ספר תורה

# کلام الله





در مطبع نایس طبع شد
واقع لدگیت هل لندن

PENTATEUCH IN PASHTU.
TRANSLATED BY THE REV WORTHINGTON JUKES.
PESHÁWUR.

MADE IN ENGLAND.
THE BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY.
LONDON.
1890.

Catalog No. A · 131 · 2 / B 1895,
Family INDO-EUROPEAN
Sub-Family INDO-IRANIAN
Branch IRANIAN
Group NON-PERSIC
Language PAṢḤTŌ
Dialect
Locality
Contents Pentateuch (Vol. 1)
Version
Translator Worthington Jukes
Published by B F B S
Place London
Date 1890
Accession No. 805,
Accession Date Sept. 1, 1931
Price set of four volumes, $1.55

# نومونه دَ کتابونو دَ زوړ عهد

# پیدایښت

## یعني اوّل کتاب دَ حضرت موسیٰ

## اوّل باب

۱ ۲ ۱ په ابتدا کښې الله آسمانونه او زمکه پیدا کړل ۲ او زمکه ورانه او
خالي وه او په مخ دَ ژورئ تیاره وه او دَ الله روح دَ اوبو په مخ
۳ ۴ رپیده ۳ او الله ووئیل چه رڼا دِ شي نو رڼا شوله ۴ او الله رڼا ولیدله
۵ چه ښه دَه نو الله رڼا له تیاري نه بېله کړله ۵ او الله رڼا ته ورځ
ووئیله او تیاري ته ئې شپه ووئیله نو نماښام او صباح وړُومبئ ورځ
۶ شوله ۶ او الله ووئیل چه دَ اوبو په مینځ کښې دِ فضا شي او اوبه دِ له
۷ اوبو بېلي کاندِ ۷ نو الله فضا پیدا کړه او په مینځ دَ اوبو کښې چه دَ
فضا دَ لاندِ وي او دَ اوبو چه دَ فضا دَ پاسَ وي جدائي ئې وکړله او
۸ هم هغه شان وشه ۸ او الله هغه فضا ته آسمان ووایه او نماښام
۹ او صباح دویمه ورځ شوله ۹ او الله ووئیل چه هغه اوبه چه دَ آسمان
دَ لاندِ دي یو ځای دِ جمع شي او وچّه دِ ښکاره شي او هم هغه شان
۱۰ وشه ۱۰ او الله وچي ته زمکه ووئیله او جمع شوو اوبو ته ئې ټالي دریاب ووایه
۱۱ او الله ولیدل چه ښه دي ۱۱ او الله ووئیل چه زمکه دِ وابښه او
هغه بوټي چه تخم نیسي او میوه داري وُني چه دَ خپل جنس په شان
میوې نیسي چه خپل تخم په کښې په زمکه باندِ وي و توکوي او هم
۱۲ هغه شان وشه ۱۲ پس زمکي وابښه او بوټي چه تخم دَ خپل جنس
په شان نیسي او وني چه میوه نیسي او تخم دَ خپل جنس په شان
۱۳ په کښې وي وویستل او الله ولیدل چه ښه دي ۱۳ او نماښام او صباح
۱۴ دریمه ورځ شوله ۱۴ او الله ووئیل چه دَ آسمان په فضا کښې دِ نورونه

شي چه دَ ورځي او دَ شپي په مينځ کښ بېلتون وکاندِ او دَ نښانو او
دَ وقتونو او دَ ورځو او دَ کالونو دَپارَ دِ شي ۱۵ او دَ آسمان په فضا ۱۵
کښ دِ نورونه شي چه زمکه روښانه کړي او هم هغه شان وشه
۱۶ نو الله دوه لوي نورونه جوړ کړل لوي نور دَ ورځي دَ حکم دَپارَ او ۱۶
وړوکي نور دَ شپي دَ حکم دَپارَ او ستوري ئي هم ۱۷ او الله دوي ۱۷
دَ آسمان په فضا کښ کېښودل چه په زمکه باندِ روښنائي وکړي
۱۸ او په ورځ او په شپه باندِ حکم وکاندِ او دَ روښنائي او دَ تياري ۱۸
په مينځ کښ جدائي وکاندِ او الله وليده چه ښه دي ۱۹ او نماښام ۱۹
او صباح څلورمه ورځ شوله ۲۰ او الله وويل چه اوبه دِ ډېر زيات ۲۰
کړي هسي ښناور چه ژوندون لري او مرغان چه دَ زمکي دَ پاسَ دَ
آسمان دَ فضا په مخ دِ والوزي ۲۱ نو الله لوي نهنګان او ټول ژوندي ۲۱
ښناور تلونکي هغه چه اوبو ډېر پيدا کړي وُو دَ هغو دَ جنس په شان
او ټول ښانګدار مرغان دَ هغه دَ جنس په شان ئي پيدا کړل او
الله وليده چه ښه دي ۲۲ او الله وله برکت ورکړ او ورته ئي وويل ۲۲
چه بار ونيسئ او ډېر شئ او دَ قالي درياب اوبه ډکي کړئ او مرغان دِ
په زمکه ډېر زيات شي ۲۳ نو نماښام او صباح پنځمه ورځ شوله ۲۴ او ۲۳-۲۴
الله وويل چه زمکه دِ ژوندي ښناور دَ هغه دَ جنس په شان خاروي او
چينجي او ځنګلي ښناور دَ هغه دَ جنس په شان وباسي او هم هغه
شان وشه ۲۵ نو الله دَ زمکي ښناور دَ هغه دَ جنس په شان او ۲۵
خاروي دَ هغه دَ جنس په شان او ټول خوځېدونکي دَ زمکي دَ هغو دَ
جنس په شان جوړ کړل او الله وليده چه ښه دي ۲۶ او الله وويل ۲۶
چه مونږ به انسان په خپل صورت او په خپل شان سره جوړوُو
چه دَ قالي درياب په کبانو او دَ آسمان په مرغانو او په خارويو او
په ټولي زمکي او په ټولو خوځېدونکو چه په زمکه خوځېږي حکم کوي ۲۷ نو الله ۲۷
انسان په خپل صورت پيدا کړ دَ الله په صورت ئي پيدا کړ نر او ښځه

ئي پيدا كړل ٢٨ او الله دوي له بركت وركړ او دوي ته الله ووېل چه ٢٨
باردار او ډېر شئ او زمكه ډكه كړئ او لاندې ئې كړئ او دَ قالي درياب
په كبانو او دَ آسمان په مرغانو او په ټولو ژونديو چه په زمكه ځي
حكم كوئ ٢٩ او الله ووېل چه گوره ما هر بوټي چه تخم نيسي تاسو ٢٩
له دركړي دي دَ ټولي زمكي په مخ باندې او هره ونه چه په هغي كښ
ميوه وي هسي ونه چه تخم نيسي ستاسو دَپارَ به خوراک شي ٣٠ او
دَ زمكي هر يو ښناور له او دَ آسمان هر مارغه له او هر يو تلونكي ٣٠
له په زمكي چه په كښ دَ ژوندون ساه وي ټول شنه واښه مې دَ
خوراک دَپارَ وركړي دي او هم هغه شان وشه ٣١ او هر څه چه ٣١
الله جوړ كړي وُو وَ ئې ليدل او گوره چه ډېر ښه دي او نماښام او
صباح شپږمه ورځ شوله ✣

## دويم باب

آ نو آسمانونه او زمكه او ټولي لښكري دَ دوي پوره شولي ٢ او الله ٢-١
چه څه كار كاوه په اوومه ورځ ئې پوره كړ نو په اوومه ورځ له
خپل ټوله كارَ چه ئې كاوه وزگار شه ٣ او الله اوومه ورځ مباركه ٣
كړله او پاكه ئې كړله ځكه چه دي له ټولَ كارَ خپله چه الله دَ جوړولو
دَپارَ پيدا كړ په دغه كښ وزگار شه ٤ دا دَ آسمانونو او دَ زمكي دَ ٤
پيدا كيدلو بيان دي په هغه وقت كښ چه دوي پيدا شوي دي په
هغه ورځ چه خداوند الله زمكه او آسمانونه جوړ كړل ٥ او هيڅ بوټي دَ ٥
ميدان لا په زمكه كښ نه وُو او هيڅ واښه دَ ميدان لا نه وُو
توكيدلي ځكه چه خداوند الله په زمكه باران نه وه وَرَولي او نه سړي
وه چه دَ زمكي خدمت وكړي ٦ نو له زمكي نه لړه پورته كيده او دَ ٦
زمكي ټول مخ به ئې اوبه كاوه ٧ او خداوند الله دَ زمكي له خاورو نه سړي ٧
جوړ كړ او دَ هغه په سپېږمو ئې ساه دَ ژوندانه پُو كړه او سړي ژوندي
ځان شه ٨ او خداوند الله په عدن كښ نمر خاته ته يو باغ نهال كړ ٨

۹ او هغه سړي چه ئې جوړ کړي وه هلته ئې وساته ۹ او له زمکې نه
هره ونه چه ښايسته ښکاريدله او په خوراک کښې ښه وه خداوند الله
وټوکوله او دَ باغ په مينځ کښې ئې هم دَ ژوندانه ونه او دَ نيکو او دَ بدو
۱۰ دَ پيژاندلو ونه ۱۰ او دَ باغ دَ اوبو کولو دَپارَ له عدن نه يو سيند ووت او له
۱۱ هغه نه څلور سرونه وويشلې شول ۱۱ دَ وړنبي نوم فيشون دي او هغه
۱۲ دَ حويلي په ټوله زمکه کښې وگرزيده چه سره زر هلته کيږي ۱۲ او دَ
۱۳ هغې زمکې سره زر کره دِي او هلته گوگل او بلور هم شته ۱۳ او
دَ دويم سيند نوم جيحون دي او هغه دَ کوش په ټوله زمکه کښې
۱۴ گرزي ۱۴ او دَ دريم سيند نوم حِدَقيل دي چه دَ اَشُور په نمرخاته بهيږي
۱۵ او څلورم سيند فرات دي ۱۵ او خداوند الله سړي واخست او دَ عدن په
۱۶ باغ کښې ئې کښيناوه چه ئې خدمت او ساتنه کوي ۱۶ او خداوند الله سړي
۱۷ ته حکم وکړ و ئې ويل چه ته دَ باغ له هرې ونې نه خوره ۱۷ لېکن دَ ښو
او دَ بدو دَ پيژاندلو له ونې نه مه خوره ځکه چه کومه ورځ چه له هغې
نه وخورې نو خواه مخواه به مړ شې
۱۸ ۱۸ او خداوند الله وويل چه ښه نه ده چه سړي يواځې وِي زه دَ ده دَپارَ
۱۹ مددگار دَ ده په شان جوړوم ۱۹ او خداوند الله ټول ځناور دَ ميدان او وارة
مرغان دَ آسمان جوړ کړل نو بيا سړي ته ئې حاضر کړل چه ووينې چه
دي ئې څه څه بولي نو چه سړي هر ژوندي نفس ته وباله نو هم هغه
۲۰ ئې نوم شه ۲۰ او سړي دَ ټولو څارويو او دَ آسمان دَمرغانو او دَ ټولو دَ ميدان
ځناورو نومونه کيښودل ولې دَ سړي دَپارَ مددگار دَ هغه په شان موندې
۲۱ نه شه ۲۱ نو خداوند الله په سړي باندِ درونده خوب ورووست نو اوده شه
او دَ هغه له پښتو نه ئې يوه واخستله او دَ هغې ځاي ئې په غوښه
۲۲ ډک کړ ۲۲ او هغه پښتۍ چه خداوند الله له سړي نه آخستې وه ښځه
۲۳ ئې تِرجوړه کړله او سړي ته ئې حاضر کړله ۲۳ نو سړي وويل چه دا
اوس هډوکې څما له هډوکو نه او غوښه څما له غوښو نه ده دا

۲۴ ښځه بللي شي چه له نرَ آخستي شوي ده ۲۴ له دي سبب سړي خپل
پلار او خپل مور پرېږدي او دَ خپلي ښځي سره پیوست شي او یو جثّه
۲۵ کیږي ۲۵ او دواړه برمند وُو سړي او دَ هغه ښځه او دوي نه شرمیدل ✤

# دریم باب

۱ ۱ او دَ میدان له ټولو ځناورو چه خداوند الله جوړ کړي وُو مار ډیر
مکار وه نو ښځي ته یې وویل چه دا رښتیا ده څه؟ چه الله ویلي دي چه
۲ دَ باغ له هري ونې نه مه خوریِٔ ۲ نو ښځي مار ته وویل چه دَ باغ دَ
۳ ونې له میوی نه خوړو شو ۳ مګر له میوي دَ هغي ونې چه دَ باغ په مینځ
کښ ده الله ویلي دي چه تاسو تر مه خوریِٔ او مه وله لاس وروړیِٔ
۴ هسي نه چه مړه شئِ ۴ نو مار ښځي ته وویل چه تاسو به هیچري مړه
۵ نه شئِ ۵ بلکه الله پوهیږي چه کومه ورځ چه تاسو له دي نه وخوریِٔ
نو ستاسو سترګي به پرانتي شي او تاسو به دَ الله په شان دَ ښو او
۶ دَ بدو پېژاندونکي شئِ ۶ نو ښځي ولیده چه ونه خوراک له ښه ده او
سترګو له خوشحالي ده او دَ پوهي بخښلو دَپارَ غوره ده نو دَ هغي له
میوي نه یې ولخسته او و یې خوړله او خپل سړي له یې هم چه ورسره
۷ وه ورکړله نو هغه وخوړله ۷ نو سترګي دَ دواړو پرانتلي شوي او پوه شول
چه مونږ برښه یو نو دَ انځر پاڼي یې وګنډلي او دَ ځانونو دَپارَ یې لنګوټه
۸ جوړ کړ ۸ او دوي آواز دَ خداوند الله واورید چه دَ ورځي دَ باد دَ الوتلو
په وقت کښ په باغ کښ ته نو سړي او ښځي یې دَ یَهْوَهْ الله له مخَ
۹ دَ باغ دَ ونو په مینځ کښ پټ شول ۹ او خداوند الله سړي ته آواز وکړ
۱۰ او ورته یې وویل چه ته چرته یي ۱۰ نو و یې ویل چه ستا آواز مې په
۱۱ باغ کښ واورید نو ویریدم ځکه چه برښه یم نو ځان مې پټ کړ ۱۱ نو
و یې ویل چه چا پوه کړي چه ته برښه یې له هغي ونې نه چه ما در
۱۲ ته حکم کړي وه چه له هغي نه مه خوره خوړلي دِ دي څه؟ ۱۲ نو سړي
وویل چه هغه ښځه چه تا ځما سره کړي وه هغي له هغي ونې نه ما

له راکړه نو ومِ خوړه ١٣ نو خداوند الله ښځي ته ووئيل چه دا دِ څه وکړل ١٣
ښځي ووئيل چه مار وغلولم نو ومِ خوړه ١٤ پس خداوند الله مار ته ١٤
ووئيل هر کله چه تا دا کار وکړ نو ته په ټولو څارويو کښ او دَ
ميدان له ټولو ځناورو نه ملعون يې په خپله ګېډه به ځې او ټولي
ورځې دَ ژوندون خپل خاوري به خوري ١٥ او زه به ستا او دَ ښځي په ١٥
مينځ کښ او ستا دَ اولاد او دَ هغي دَ اولاد په مينځ کښ دښمني واچوم
نو دي به ستا سر ټکوي او ته به دده پونده چيچي ١٦ او ښځي ته ئې ١٦
ووئيل چه ستا عذاب او ستا حمل به ډېر زيات کړم په عذاب سره به
اولاد راوړي او خپل سړي ته به دِ شوق وي او دي به په تا باندِ
حکم کوي ١٧ او آدم ته ئې ووئيل چه هر کله تا دَ خپلي ښځي خبره واورېدله ١٧
او له هغي ونې نه چه ما حکم کړي وه چه له هغي نه ته مه خوره - وخوړله
نو زمکه ستا په سبب لعنتي شوله ټولي ورځې دَ ژوندون خپل به ته
په غم سره خوري ١٨ او هغه به ستا دَپارَ اغزي او مالکونډي وټوکوي ١٨
او ته به دَ ميدان شينکي خوري ١٩ ته به دَ خپل مخ په خولو سره ډوډيْ ١٩
خوري تر هغه پوري چه زمکي ته ورو ګرزي چه ته ترِ آخستلي شوي يي
څکه چه ته خاوري يي او خاورو ته به ور ګرزي ٢٠ او آدم دَ خپلي ښځي ٢٠
نوم حوّاء وباله څکه چه دا دَ ټولو ژوندو مور ده ٢١ او خداوند الله دُ آدم او ٢١
دَ هغه دَ ښځي دَپارَ له څرمني جامي جوړي کړلي او دوارو ته ئې واغوندولي
٢٢ او خداوند الله ووئيل چه اوس آدم لکه يو له مونږ دَ ښو او دَ بدو ٢٢
پېژاندونکي شه هسي دِ نه وي چه خپل لاس اوږد کړي او دَ ژوندانه له
ونې نه هم څه واخلي او وخوري او تر ابدَ ژوندي پاتي شي ٢٣ نو خداوند ٢٣
الله دي دَ عدن له باغ نه ووېست چه دَ هغي زمکي چه دي ترِ آخستي شوي
وه خدمت وکړي ٢٤ پس آدم ئې وشاړه او دَ عدن دَ باغ په نمرخاته ٢٤
کرّوبيان او بريښېدونکي ګرزېدونکي توري دَپارَ دَ ساتني دَ لاري دَ ونې
دَ ژوندون ئې ودرول ✣

# څلورم باب

۱ آ او آدم خپله ښځه حوّاء وپېژندله نو هغه حامله شوه او قائن تِرِ
۲ پيدا شه او وئې ويل چه سړي مِ له خداوند نه وموند ۲ او بيا دَ هغه
وروړ هابيل تِرِ پيدا شه او هابيل دَ ګډو شپون وه او قاين دَ زمکي
۳ زميندار وه ۳ او پس له څو ورځو داسي وشوه چه قاين دَ خداوند دَپارَ دَ
۴ زمکي له حاصلاتو نه هديه راوړله ۴ او هابيل هم وړُمبني پيدا شوي
ګډوري او څربي دَ هغو راوړل نو خداوند هابيل او دَ هغه هديه قبوله
۵ کړله ۵ مګر قاين او دَ هغه هديه ئې قبوله نه کړله نو قاين ډېر په قهر
۶ شه او مخ ئې سړاوي کړ ۶ نو خداوند قاين ته ووِ چه ته ولي په قهر شوي
۷ او ولي دِ مخ سړاوي کړ ۷ که ته ښه وي نو اوچت شوي به نه وي څه؟
او که ته ښه نه ئې نو خطا دروازي څخه پرته ده او تا ته ئې شوق دي
۸ نو ته به هغه باندِ حکم کوي ۸ او قاين دَ خپل وروړ هابيل سره
خبري وکړي نو داسي وشول هرکله چه دوي دواړه به پټي کښ وُو نو
۹ قاين په هابيل خپل وروړ ور پاڅېد او و ئې وژه ۹ نو خداوند قاين ته وويل
چه ستا وروړ هابيل چرته دي هغه وويل چه زه خبر نه يم زه دَ خپل
۱۰ وروړ ساتونکي يم څه؟ ۱۰ او و ئې ويل چه څه دِ وکړل ستا دَ وروړ دَ
۱۱ وينو آواز ما ته له زمکي نه فرياد کوي ۱۱ نو اوس ته لعنتي يې له هغي
زمکي نه چه خوله ئې وازه کړي ده چه ستا دَ وروړ وينې ستا له لاسَ
۱۲ واخلي ۱۲ څوچه ته زميندارِي کوي نو هغه به تا له خپل حاصل در
۱۳ نه کړي او ته به په زمکه باندِ پريشانَ او بې ځايه يې ۱۳ نو قاين خداوند ته
۱۴ وويل چه زما ګناه له طاقت نه لويه ده ۱۴ ګوره تا نن دَ زمکي له مخَ
وشړلم او زه ستا له مخَ به پټ شم او په زمکه کښ به پريشانَ او بې ځايه
۱۵ شم او داسي به وِي چه هرڅوک چه ما مومي نو به مِ وژني ۱۵ نو خداوند
ورته وويل چه هرڅا چه قاين مړ کړ له هغه نه به اوه واره بدل
واخستلي شي او خداوند په قاين باندِ نښه ولګوله دَپارَ دَ دي چه هرڅوک

چه بې موږي نه دِ وژني ۱۶ نو قاين دَ خداوند له حضوره ووت او په ۱۶
نمرخاته دَ عدن دَ نود په زمکه استوګي شه ۱۷ او قاين خپله ښځه ۱۷
وپيژانده او حامله شوه او حنوک تِر پيدا شه او هغه ښهر جوړ
کړ او دَ ښهر نوم يې دَ خپل زوي دَ نامه په شان حنوک کيښود ۱۸ او ۱۸
له حنوک عيراد پيدا شه او له عيرادَ محويائيل پيدا شه او له محويائيلَ
متوسائيل پيدا شه او له متوسائيلَ لمک پيدا شه ۱۹ او لمک دَ خپل ۱۹
ځان دَپارَ دوه ښځي وکړلي دَ يوي نوم عاده او دَ بلي نوم صلّه ۲۰ له عادي ۲۰
نه يابال پيدا شه هغه دَ کيږديو اوسيدونکيو او دَ ډنګرو دَ غوبنو
پلار وه ۲۱ او دَ هغه دَ ورور نوم يُوبال وه هغه چه دَ ټولو سِتار او ۲۱
شپيلۍ وهونکيو پلار وه ۲۲ او له صلّي نه توبلقائن پيدا شه هغه ښيونکي ۲۲
دَ ټولو کاريګرو دَ مس او دَ اسپني وَه او دَ توبلقائن خور نعمه وه
۲۳ او لمک خپلو ښځو ته وويل ۲۳

واوريِ اي عادي صلّي ځما خبري
غوږ کړيِ اي دَ لمک ښځو ځما خبري
چه سړي م دي وژلي دَپارَ دَ خپل پرهار
او ځوان مِ ووژنه دَپارَ دَ خپل آزار
۲۴ دَ قاين که بدل کيږي په اوه وارَ ۲۴
دَ لمک دَپارَ به شِي په اوه اويا ګذارَ

۲۵ بيا آدم خپله ښځه وپيژانده او هغي نه زوي پيدا شه او دَ هغه ۲۵
نوم يې شيث کيښود چه الله دَ هابيل په بدل کښ چه قاين وژلي وه
بل نسل کيښودلي دي ۲۶ او دَ شيث هم زوي پيدا شه چه دَ هغه ۲۶
نوم يې انوش کيښود له هغه وقتَ دَ خداوند په نامه بللو شروع وشوه +

## پنځم باب

آ دا دَ آدم دَ پيدا کيدلو کتاب دي په هغه ورځ چه الله آدم پيدا کړ ۱
دَ الله په صورت يې جوړ کړ ۲ نر او ښځه يې پيدا کړل او برکت يې ورکړ ۲

۳ او په هغه ورځ چه پیدا کړي شول نوم ئې آدم کېښود ۳ او آدم د یو
سل دېرشو کالو شه او زوي ئې په خپل شان او په خپل صورت تر
۴ پیدا شه او نوم ئې شیث کېښود ۴ او ورځي د آدم پس له پیدا کیدلو د
۵ شیث اته سوه کاله وي او ځامن او لوڼه تر پیدا شول ۵ نو د آدم ټولي
۶ ورځي نه سوه او دېرش کاله وي او مړ شه ۶ او شیث د سلو او پنځه و
۷ کالو شه نو انوش تر پیدا شه ۷ او شیث پس له پیدا کیدلو د انوش
۸ اته سوه اوه کاله شه او ځامن او لوڼه تر پیدا شول ۸ او ټولي ورځي
۹ د شیث نه سوه او دولس کاله وي نو مړ شه ۹ او انوش د نوي کالو
۱۰ شه نو قینان تر پیدا شه ۱۰ او انوش پس له پیدا کیدلو د قینان اته سوه
۱۱ پنځلس کاله شه او ځامن او لوڼه تر پیدا شول ۱۱ او ټولي ورځي د انوش
۱۲ نه سوه او پنځه کاله وي نو مړ شه ۱۲ او قینان د اویا کالو شه نو مهللئیل
۱۳ تر پیدا شه ۱۳ او قینان پس له پیدا کیدلو د مهللئیل اته سوه او
۱۴ څلویښت کاله شه او ځامن او لوڼه تر پیدا شول ۱۴ او ټولي ورځي د
۱۵ قینان نه سوه اولس کاله وي او مړ شه ۱۵ او مهللئیل د پنځه شپیته
۱۶ کالو شه نو یارد تر پیدا شه ۱۶ او مهللئیل پس د یارد له پیدا کیدلو
۱۷ اته سوه او دېرش کاله شه او ځامن او لوڼه تر پیدا شول ۱۷ او ټولي
۱۸ ورځي د مهللئیل اته سوه پنځه نوي کاله وي او مړ شه ۱۸ او یارد د
۱۹ سل او دوه شپیته کالو شه نو حنوخ تر پیدا شه ۱۹ او یارد پس
د حنوخ د پیدا کیدلو اته سوه کاله شه او ځامن او لوڼه تر پیدا شول
۲۰ ۲۰ او ټولي ورځي د یارد نه سوه او دوه شپیته کاله وي او مړ شه
۲۱ ۲۲ ۲۱ حنوخ د پنځه شپیته کالو شه نو مُتُوشَلح تر پیدا شه ۲۲ او حنوخ
پس د متوشلح له پیدا کیدلو دري سوه کاله الله سره ګرزیده او ځامن
۲۳ او لوڼه تر پیدا شول ۲۳ او ټولي ورځي د حنوخ دري سوه پنځه شپیته
۲۴ کاله وي ۲۴ او حنوخ د الله سره ګرزیده او و نه موند شه ځکه چه
الله دي واخست ۲۵ او مُتُوشَلح د سل او اوه اتیا کالو شه نو لمک تر

پیدا شه ۲۶ او متوشلح پس دَ لمک دَ پیدا کیدلو نه اوه سوَ دوه اتیا کالَ ۲۶
شه او ځاسن او لونړه تر پیدا شول ۲۷ او ټولي ورځي دَ متوشلح نه سوَ ۲۷
او نه شپیته کالَ وي او مړ شه ۲۸ او لمک چه دَ سل او دوه اتیا کالو ۲۸
شه نو زوي ترِ پیدا شه ۲۹ او نوم يي نوح کیښود او ویل يي چه دي به ۲۹
سونړ له ځمونږ له کارَ او ځمونږ دَ لاسونو له سختيِ نه تسلي راکړي دَ هغي
زمکي له کبلَ چه خداوند پرِ لعنت کړي دي ۳۰ او لمک پس دَ نوح له پیدا ۳۰
کیدلو پنځه سوَ او پنځه نوي کالَ شه او ځاسن او لونړه ترِ پیدا شول
۳۱ او ټولي ورځي دَ لمک اوه سوَ او اوه اویا کالَ وي او مړ شه ۳۲ او ۳۱ ۳۲
نوح دَ پنځهٔ سوو کالو وه چه شیم او حام او یفث ترِ پیدا شول ◆

## شپږم باب

۱ او داسي وشوه چه سړي په مخ دَ زمکي په زیاتیدلو شروع شول او ۱
هغوي له لونړه پیدا شوي ۲ او ځاسنو دَ الله دَ سړو لونړه ولیدلي چه ۲
ښایسته دي نو دَ خپل ځان دَپارَ له ټولو چه يي غوره کړلي ښځي يي
واخستلي ۳ او خداوند وَوِ چه ځما روح به له انسان سره تر هیشه ۳
پورِ مزاحمت و نه کړي دَ ده په گمراه والي کښ بشر دي او ورځي به يي
یو سل شل کالَ وي ۴ او په هغوي کښ جباران په زمکه کښ وُو او ۴
پس له هغه هم چه دَ الله ځاسن دَ انسان لونړو له راغلل او دوي لره
اولاد ترِ پیدا شه هغوي جباران چه له قدیم نه ناموس دار سړي وُو
۵ او یهوَه ولیدل دَ انسان شرارت په زمکه کښ ډیر شه او ټول تصور ۵
دَ تدبیرونو دَ زړه يي هره ورځ صِرف بدي وه ۶ نو خداوند په جوړولو ۶
دَ انسان په زمکه کښ پښیمان شه او په خپل زړه کښ خپه شه
۷ پس خداوند وَوِ چه هغه انسان چه مِ پیدا کړي دي دَ زمکي له مخ ۷
نه به يي ورک کړم له انسان نه ترِ ځارویو تر خوځیدونکیو او تر مرغانو
دَ آسمان شکه چه زه پښیمان شوم چه ما دوي جوړ کړل ۸ لیکن نوح ۸
دَ خداوند په نظر کښ فضل بیاموند ۹ دا دَ نوح پیریِ دي نوح صادق ۹

١٠ سړي کامل وه په خپلو پیړو کښې او نوح به له الله سره ګرزیده ١٠ او
١١ دَ نوح درې ځامن پیدا شول شیم او حام او یافث ١١ او زمکه دَ الله په
١٢ مخ کښې فاسد شوه ځکه چه زمکه له ظلمه ډکه شوه ١٢ او الله زمکه
ولیده نو ګورد چه دا فاسده شوله ځکه چه هر بشر په زمکې بانډې خپله
لاره فاسده کړله
١٣ ١٣ او الله نوح ته ووې چه دَ هر بشر اجل ځما په مخ کښې راغي ځکه
چه له دوي نه زمکه له ظلمه ډکه شوه پس ګوره زه به دوي له زمکې سره
١٤ هلاک کړم ١٤ ته دَ ځان دَپاره کشتۍ دَ جوفر له لرګي نه جوړه کړه او په
کشتۍ کښې کوټړۍ جوړي کړه او هغه له دننه او له بهره رنځړه پرې پوري
١٥ کړه ١٥ او په دې شان سره جوړه کړه اوږدوالي دَ کشتۍ درې سوه لاسه او
١٦ پلنوالي ئې پنځوس لاسه او لوړوالي ئې دیرش لاسه وي ١٦ کشتۍ له کړکۍ
جوړه کړه او هغه له پورته نه تر لاس تمامه کړه او دَ کشتۍ دډې ته
١٧ دروازه کیږده او لاندنۍ او مینځنۍ او پاسنۍ چت ئې جوړه کړه ١٧ او زه
ګوره زه طوفان دَ اوبو په زمکه راولم چه ټول بشر چه په کښې دَ ژوندون
ساه وي دَ آسمانونو له لاندې نه هلاک کړم او هر څه چه په زمکه
١٨ کښې دي وبه مرې ١٨ لیکن خپله وعده له تا سره قائموم نو کشتۍ ته راشه ته او
١٩ ستا ځامن او ستا ښځه او ستا دَ ځامنو ښځي له تا سره ١٩ او له ټولو
ځناوره له ټولو بشرو نه له هریو نه دوه دوه په کشتۍ ننباسه دَ ژوندي
٢٠ پاتې کیدلو دَپاره ئې تا سره نر او ښځه به وي ٢٠ له مرغانو نه دَ هغوي دَجنس په
شان او له ځارویو نه دَ هغوي دَجنس په شان او له ټولو ښکریدونکو دَ زمکې
نه دَ هغوي دَجنس په شان له ټولو نه دوه دوه دې تا له راشي دَ هغوي
٢١ دَ ژوندي پاتې کیدلو دَپاره ٢١ او ته واخله ځان دَپاره له ټولَ خوراک نه
چه خوړلې شي او ځان ځنخه ئې جمع کړه چه ستا دَپاره او دَ هغوي دَپاره
٢٢ به خوراک شي ٢٢ او نوح موافق له هر څه چه الله ورته حکم کړې وه
هسې کار ئې وکړه ❊

# اووم باب

۱ ۱ او خداوند نوح ته ووِ چه کشتيِ ته ننوزه ته او ستا ټول کور ځکه
۲ چه په دي زمانه کښ مِ ته په خپل مخ کښ صادق وليدي ۲ او له ټولو
پاکو څناورو نه څان له واخله اوه اوه نر او ښځه ئي او له څناورو نه
۳ چه پاک نه دِي دوه دِ وِي نر او ښځه ئي ۳ او هم دَ هوا له مرغانو نه اوه
۴ اوه نر او ښځه ئي دَ پارَ دَ ژوندي لرلو دَ اولاد په مخ دَ ټولي زمکي ۴ ځکه
چه زه به پس له اوهؤ ورځو نه په زمکي څلويښت ورځي او څلويښت
شپي باران و ورَوم او هر پايدار څيز چه مِ جوړ کړي دي دَ زمکي
۵ له مخ نه به ئي ونوکم ۵ او نوح ټول موافق له هغه چه خداوند هغه
ته فرمايلي وه وکړل

۶ ۶ او نوح دَ شپږو سوو کالو وه چه طوفان دَ اوبه په زمکي وشه
۷ ۷ او نوح او څامن ئي او ښځه ئي او ښځي دَ څامنو ئي له هغه سره دَ
۸ طوفان دَ اوبو له سببَ کشتيِ ته ننوتل ۸ او له پاکو څناورو نه او له هغو څناورو
۹ نه چه پاک نه دِي او له مرغانو نه او ټول هغه چه په زمکه ښخيږي ۹ دوه
دوه نر او ښځه نوح څخه کشتيِ ته ننوتل په هغه شان چه الله نوح ته فرمايلي
۱۰ وه ۱۰ او واقع شوه پس له اوه ورځو نه چه دَ طوفان اوبه په زمکي باندِ شوي
۱۱ ۱۱ او په شپږم سو کال دَ نوح له ژوندون نه دَ دويمي مياشتي په اوه‌لسمَ ورځ
له مياشتي نه په هغي ورځي کښ ټولي چيني دَ لويي ژوري وچاودي او دَ آسمان
۱۲ سُوري پرانتي شول ۱۲ او باران څلويښت ورځي او څلويښت شپي په زمکي باندِ
۱۳ وه ۱۳ او هم په هغه ورځ نوح او شيم او حام او يفث دَ نوح څامن او دَ نوح ښځه
۱۴ او دَ هغه دَ څامنو دري ښځي ورسره کشتيِ ته ننوتل ۱۴ هغوي او هر ځاندار
په جنس دَ هغه او هر څاروي په جنس دَ هغه او هر ښخيدونکي په جنس
دَ هغه چه په زمکه ښخيږي او هر مرغه په جنس دَ هغه او هر مرغه
۱۵ چه وزر لري ۱۵ پس نوح څخه کشتيِ ته دوه دوه له هر ځاندار نه
۱۶ چه په کښ ساه دَ ژوندانه وه ننوتل ۱۶ او ننوتونکي نر او ښځه له

هر حیوانات نه ننوتل په هغه شان چه الله هغه ته فرمایلي وه
۱۷ او خداوند په هغه پسې ور پورې کړ ۱۷ او طوفان څلوېښت ورځې په
زمکه وه او اوبه ډېرې شوې او کشتۍ یې پورته کړله او له زمکې نه
۱۸ اوچته شوه ۱۸ پس اوبو غلبه وکړه د زمکې په مخ باندې ډېرې زیاتې
۱۹ شولې او کشتۍ د اوبو په مخ باندې روانه شوه ۱۹ او اوبو ډېره ډېره
په زمکه باندې غلبه وکړه ټول لوړ غرونه چه د ټول آسمان د لاندې
۲۰ وو پټ شول ۲۰ او اوبو له پورته نه پنځلس لاس غلبه وکړه نو غرونه
۲۱ پټ شول ۲۱ او ټول ځان‌دار چه ګرځېدل په زمکې له مرغانو او له
څارویو او له حیواناتو او له ټولو خوځېدونکیو چه په زمکه ښخېږي له
۲۲ ټولو سړو سره مړه شول ۲۲ او ټول هغه چه یې ساه د روح د
ژوندون په سپېږمو کښې وه له ټول هغه نه چه په وچه وه ومړل
۲۳ ۲۳ او هر پایدار څیز چه د زمکې په مخ وه له سړو تر څارویو او ښخېدونکیو
او د هوا تر مرغانو پورې له زمکې نه وتوکلې شول او یواځې نوح او
۲۴ هغوی چه په کشتۍ کښې له هغه سره وو باقې پاتې شول ۲۴ او اوبو
یو سل پنځوس ورځې په زمکې باندې غلبه وکړه ❊

## اتم باب

۱ ۱ او الله نوح او ټول ځان‌دار او ټول څاروي چه له هغه سره په
کشتۍ کښې وو یاد کړل او الله یو باد په زمکې والوزوه او اوبه ودرېدې
۲ ۲ او د ژورې چینې او د آسمان کړکۍ بندې شوې او باران له آسمان
۳ منه شه ۳ او اوبه له زمکې نه په ورو ورو کمې شولې او پس له پوره
۴ کېدو د سلو پنځوسو ورځو نه اوبه کمې شوې ۴ او کشتۍ په اولسمه ورځ
۵ د اومې میاشتې د اراراط په غرونو قرار ونیوه ۵ او اوبه تر لسمې میاشتې
پورې پله پسې کمېدې او په اولې د لسمې میاشتې د غرونو څوکې ښکاره
۶ شولې ۶ او واقع شوه پس له څلوېښتو ورځو نه چه نوح د هغې کشتۍ
۷ کړکۍ چه جوړه کړې یې وه پرانته ۷ او کارغه یې واسته چه ته راته به تر

وچیدو دَ اوبو یورې له زمکې نه ۸ پس کونتره ئې له ځانَ واستوله چه ووینې ۸
چه اوبه دَ زمکې له مخَ کمې شوې دي ۹ لیکن کونترې آرام دَ خپلو پښو دَ پارَ بیا ۹
نه مونده هغه ځکه کشتئِ له راوګرزیدله ځکه چه اوبه په مخ دَ ټولې زمکې وې
پس خپل لاس ئې اوږد کړ هغه ئې واخستله او خپل ځان څخه ئې کشتئِ نه
ننویستله ۱۰ او اوه ورځې نورې هغه وکتل کونتره ئې بیا له کشتئِ نه واستوله ۱۰
۱۱ او کونتره دَ نماښام په وخت کښ هغه له بیرته راغله او ګوره چه دَ خوونه ۱۱
تازه پاڼه دَ هغې په خولې کښ وه او نوح پوه شه چه اوبه دَ زمکې له مخَ کمې
شوې ۱۲ اوه ورځې نورې ئې هم وکتل بیائې کونتره واستوله چه هغه څخه بیا ۱۲
رانه غله ۱۳ او داسې وشوه په اولې ورځې دَ اولې میاشتې دَ یو دَ پاسَ شپږم سو کال کښ ۱۳
اوبه دَ زمکې له مخَ وچې شوې نو نوح دَ کشتئِ پرده پورته کړله او وئې کتل څه ګورې چه
دَ زمکې مخ وچ شوی دي ۱۴ او په اووِیشتمې ورځې دَ دویمې میاشتې زمکه وچه شوه ۱۴
۱۵ او الله له نوح سره په خبرو شه و وئې فرمائل ۱۶ چه له کشتئِ نه بهر ۱۵ ۱۶
راووزه ته او ستا ښځه او ستا ځامن او ستا دَ ځامنو ښځې له تا سره ۱۷ او هر ۱۷
ځاندار چه له تا سره دي له ټول بشر نه له مرغانو او څارویو او ټولو ځځیدونکیو
چه په زمکه باندې ګرزي له خپل ځان سره بهر کړه چه په زمکه وزیږوي او
میوه‌دار شي او زیات شي په زمکه باندې ۱۸ نو نوح او ځامن ئې او ښځه ئې او ۱۸
دَ ځامنو ښځې ئې له هغه سره بهر راووتل ۱۹ ټول ځاندار او ټول ځځیدونکې ۱۹
او ټول مرغان او هرڅه چه په زمکې باندې ځځیږي دَ خپلو جنسونو په شان له
کشتئِ نه بهر شول ۲۰ او نوح مذبح دَ خداوند دَ پارَ جوړه کړه او له هرَ پاکَ ځناور ۲۰
او له هرَ پاکَ مارغه نه ئې واخست دَ سوزولو قربانئَ ئې په هغه مذبح
باندې وخیژولې ۲۱ او خداوند دَ خاطرخواهئِ بوئ بوې کړ او خداوند له خپل زړه سره ۲۱
ووِیل چه زه به په زمکه باندې دَ انسان له سببَ بیا لعنت ونه کړم چه له خپلې
ځوانئِ نه په فکر دَ زړه دَ انسان شریر دي او بیا هر ځاندار په هغه شان
چه مې کړي دي بیا به ئې و نه وژنم ۲۲ او تر ټولو ورځو دَ زمکې کرل او ۲۲
رېبل او یخنې او ګرمي او اوړې او ژمې او ورځ او شپه به تمام نه شي *

# نهم باب

۱ آ نو الله نوح او دَ هغه ځامنو لره برکت ورکړ هغو ته يُ ووِ چه باردار او
۲ ډير شئ او زمکه ډکه کړئ ۲ او ويره له تاسو او خوف له تاسو به هر
حيوان دَ زمکي او هر مارغه دَ هوا دِ شي هرڅه چه په زمکه باندِ ښخيږي
۳ او ټول مهي دَ درياب ستاسو په لاس کښ درکړي شوي دي ۳ او هر ژوندي
تلونکي ستاسو دَپارَ به خوراک شي دَ زرغون بوټي په شان تاسو لره مِ
۴ ټول درکړي دي ۴ ليکن غوښه دَ هغه له ژوندون سره چه ويني ئي دِي
۵ مه خورئ ۵ او ضرور ستاسو ويني ستاسو دَ ژوندانه دَ ويني بدله به واخلم
دَ هر ښاور له لاس بدله به واخلم او دَلاس دَ انسان دَ لاس دَ سړي
۶ دَ خپل ورور دَ انسان دَ ژوندون بدله به واخلم ۶ او تويونکي دَ ويني دَ
انسان وينه دَ هغه به له انسان نه توي کړي شي ځکه چه الله انسان
۷ په خپل صورت جوړ کړي دي ۷ او تاسو باردار او ډير شئ او په زمکه کښ
وزيږوئ او په کښ ډير شئ
۸ ۸ او الله له نوح سره او له ځامنو سره يُ چه ورسره وُو خبري وکړي
۹ و يُ ويل ۹ او زه گوره زه خپله وعده له تاسو سره او ستاسو له اولاد
۱۰ سره پس له تاسو نه به قائم کړم ۱۰ او له ټولو ځاندارو نه چه له تاسو
سره دِي له مرغانو او له څارويو او له ټولو ښاورو له زمکي نه چه له
تاسو سره دِي له ټولو بهر تلونکو له کشتئ تر ټولو ښاورو دَ
۱۱ زمکي ۱۱ او له تاسو سره به خپله وعده قايم کړم چه ټول
بشر دَ طوفان له اوبو نه به بيا ورک نه شي او بيا به طوفان را
۱۲ نه شي چه زمکه خرابه کړي ۱۲ او الله وويل چه دا نښه دَ هغي وعدي
ده چه به مينځ زما او ستاسو او په مينځ دَ هغو ټولو ځاندارو کښ
۱۳ چه له تاسو سره دِي تر هميشه پيړئ پوري درکوم ۱۳ زه خپل ليندۍ
په وريځ کښ ږدم او په مينځ زما او دَ زمکي به دَ وعدي نښانه
۱۴ وي ۱۴ او داسي به وشي چه زه وريځ په زمکه باندي و غوړوم

۱۵ په وريځي کښې لېنده ښکاره شي ۱۵ او خپله وعده چه په مېنځ ځما او
ستاسو کښې او په مېنځ دَ ټولو ځان‌دارانو دَ هر بشر په ياد به راورم
۱۶ او دَ طوفان او به به بيا دَ ټول بشر دَ هلاکولو دَپارَ و نه شي ۱۶ او لينده
به په وريځ کښې شي او هغه ته به وګورم چه ابدِي وعده چه په
مېنځ دَ الله او دَ ټولو ځاندارانو کښې دَ هر بشر چه په زمکه باندِ دِي
۱۷ يادَ کړم ۱۷ او الله نوح ته ووِ چه نښانه دَ هغې وعدي چه ځما او دَ
ټول بشر په مېنځ کښې چه په زمکه باندِ دِي قايمَه کړي مِ ده دا ده-
۱۸ ۱۸ او دَ نوح ځامن چه له کښتيِ نه بهر راغلل شيم او حام او يفث
۱۹ دِي او حام دَ کنعان پلار دَي ۱۹ دَ نوح دري ځامن دوي دِي او له
۲۰ هغوي نه ټوله زمکه آباده شوه ۲۰ او نوح په زمينداريِ باندِ شروع
۲۱ وکړه انګورستان ئې نهال کړ ۲۱ او شراب ئې وڅښل مست شه
۲۲ او په خپل تنبو کښې بربنډ شه ۲۲ او حام دَ کنعان پلار دَ خپل
۲۳ پلار بربنډوالي وليد او خپل دواړه ورونړه ئې باهر خبر کړل ۲۳ او
شيم او يفث څادر واخست په خپلو دواړو اوږو ئې واچوه پسي شا
لارل دَ خپل پلار بربنډوالي ئې پټ کړ او مخونه ئې وِرستو وُو
۲۴ بربنډوالي دَ خپل پلار ئې و نه ليد ۲۴ او نوح له خپلي نشي نه ويښ
شه او هغه چه خپل کشر زوي له هغه سره کړي وُو معلوم ئې
۲۵ کړل ۲۵ او و ئې ويل چه

په لعنت بد وِي کنعان
او دَ خپل ورونړه به غلام وِي دَ غلامان

۲۶ ۲۶ او هم ئې وويل
خداوند الله دَ شيم مبارک به وِي
او کنعان دَ هغه مريي دِ وِي
۲۷ ۲۷ او الله به يفث له ارتوالي ورکړي
دَ شيم په ډېرو کښې به اوسي

او کنعان به دَ هغو مريي وي
٢٨ ٢٩ ٢٨ او نوح پس له طوفانَ دري سوَ پنځوس کالَ ژوندون وکړ ٢٩ او ټولي ورځي
دَ نوح نه سوَ او پنځوس کالَ وي نو مړ شه +

# لسم باب

١ ١ پيرئ دَ نوح دَ ځامنو دا دي شيم او حام او يفث او هغوي لره پس
٢ له طوفانَ ځامن پيدا شول ٢ دَ يفث ځامن جومر او ماجوج او مادي
٣ او ياوان او توبال او مَشک او تيراس دي ٣ او دَ جومر ځامن اشکناز
٤ او ريفاث او توجرماه ٤ او دَ ياوان ځامن اِليشاه او ترشيش او کِتّيم
٥ او دودانِيم ٥ له دوي نه جزيري دَ قومونو دَ هغوي له ژبو سره هر يو
موافق له ژبي خپلي او دَ قبيلو دَ هغو سره له قامونو ئي تقسيم شول-
٦-٧ ٦ او دَ حام ځامن کوش او مصريم او فوط او کنعان وُو ٧ او دَ کوش ځامن
سبا او حويلاه او سبتاه او رعماه او سبتکاه او دَ رعماه ځامن شِبا او
٨ دِدان وُو ٨ او له کوش نمرود پيدا شه هغه په ځمکه کښ په جبارئ سره
٩ شروع وکړه ٩ هغه دَ خداوند دَ وړاندِ زورور ښکاري وه له هغه سبب ويلي
١٠ شي چه دَ نمرود په شان زورور ښکاري دَ خداوند دَ وړاندِ ١٠ او دَ هغه
دَ بادشاهي شروع په بابل او عرک او اکد او کلنه دَ شنعار په ځمکه کښ
١١ وه ١١ له هغه ځمکي نه اشّور بهر راغي او نينويه او دَ رحوبث ښهر او کالح
١٢ ئي جوړ کړل ١٢ او هم رَسِن چه په مينځ دَ نينويه او دَ کالح کښ دي هغه
١٣ لوي ښهر دي ١٣ او له مصرايمَ لوديم او عنانِيم او لهابِيم او نفتوحِيم پيدا
١٤ شول ١٤ او پتروسِيم او کسلوحِيم چه فِلسطِيم له هغوي نه ووتل او هم
١٥ ١٦ کفتورِيم ١٥ او له کنعانَ صيدون مشر او حيث پيدا شول ١٦ او هم يبوسِي
١٧ ١٨ او امورِي او جرجاشِي ١٧ او حِوي او عرقي او سِني ١٨ او اروادي او صمارِي
١٩ او حماثِي او پس له هغه دَ کنعانيانو قبيلي ښوري وري شولي ١٩ او دَ
کنعانيانو سرحد له صيدون نه چه ځي جراه ته تر عزاه پوري چه ځي سدوم
٢٠ او عموراه او ادماه او صبويم ته تر لاشع پوري ٢٠ دا دي ځامن دَ حام

موافق له قبیلو خپلو او دَ ژبو خپلو په ملکونو خپلو په قامونو خپلو کښ
۲۱ ۲۱ او شیم له چه هم پلار وه دَ ټولو بني عیبر او مشر ورور دَ یفث وُ
۲۲ اولاد تړِ پیدا شول ۲۲ او دَ شیم ځامن عیلام او اشور او اَرَفکشَدَ او لود
۲۳ او ارام وُوُ ۲۳ او دَ ارام ځامن عوص او حول او جثر او مَش وُوُ —
۲۴-۲۵ ۲۴ او له اَرَفَکشَدَ شالح پیدا شه او له شالح عیبر پیدا شه ۲۵ او له عیبرَ
دوه ځامن پیدا شول دَ یوښوم پلج ځکه چه دَ هغه په زمانه کښ زمکه
۲۶ تقسیم شوله او دَ هغه دَ ورور نوم یقطان وه ۲۶ او له یقطانَ الموداد
۲۷ او شالف او حضرماوَث او یارَح پیدا شول ۲۷ او هم هدورام او اوزال
۲۸ ۲۹ او دِقلاه ۲۸ او عوبال او ابیمائیل او شِبا ۲۹ او اوفر او حویلاه او یوباب
۳۰ دا ټول دَ یقطان ځامن دِي ۳۰ او دَ هغوي مسکن وه چه ځي له میشا نه
۳۱ سفاراته چه غر دي دَ نمرخاته ۳۱ او دا دِي دَ شیم ځامن موافق له قبیلو
۳۲ خپلو او دَ ژبو خپلو په ملکونو خپلو سره موافق دَ قامونو خپلو ۳۲ دا
دِي قبیلي دَ نوح دَ ځامنو موافق له پیړو خپلو سره دَ قامونو خپلو
او پس له طوفانَ له هغوي نه قامونَ په زمکه کښ بنواره شول *

## یولسم باب

۱-۲ ۱ او ټوله زمکه دَ یوي ژبي او دَ یوي خبري وه ۲ او داسي وشه چه
په وقت دَ کوچ کښ له نمرخاته یو میدان يْ دَ شنعار په زمکه کښ
۳ بیاموند او هلته کښ اوسیدل ۳ او سرِي خپل ملګرِي ته ووِ چه
راشئِ چه خښتي جوړِ کړُو او هغه ښي پخي کړو او هغوي لره دَ کټو په
۴ ځاي خښتي او دَ خټو په ځاي خَمَر وه ۴ هغوي وویل چه راشئِ چه
خپل ځان لره ښهر او برج چه سرئي تر آسمان وِي جوړ کړو او دَ ځانونو
دَپارَ نوم مشهور کړو هسي نه وِي چه دَ ټولي زمکي په مخ باندِ خواره
۵ شو ۵ او خداوَند دَپارَ دَ لیدلو دَ هغه ښهر او دَ هغه برج چه بني آدمو جوړوُ
۶ ښکته راغي ۶ او خداوَند ووِ چه ګوره امت یو دي او دَ ټولو دَپارَ یوه ژبه ده
او په کولو يْ شروع کوِي او اوس له هرَ هغه چه هغوي دَ هغه دَ

۷ جوړولو اراده لري له هغوي نه منع کيدي نه شي ۷ راشه چه کښته راشو او هلته دَ
۸ هغوي ژبه ګډه وډه کړو چه يو دَ خپل ملګري په ژبه پوه نه شي ۸ او يهوه
هغوي له هغه نه په مخ دَ ټولي زمکي خواره کړل چه له جوړولو دَ ښهر نه پاتي شول
۹ ۹ له هغه سبب دَ هغه نوم بابل کيښودي شه ځکه چه خداوند دَ ټولي زمکي ژبه
هلته ګډه وډه کړه او خداوند هغوي له هغه ځايَ دَ ټولي زمکي په مخ خواره کړل
۱۰ ۱۰ دا ده پيړۍ دَ شيم او شيم سل کلنۍ وه او پس له طوفانَ دوه کالَ
۱۱ ارفکشد ترِ پيدا شه ۱۱ او شيم پس له پيدا کيدلو دَ ارفکشد پنځه سوَ کالَ
ژوندون وکړ او ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۱۲ ۱۳ ۱۲ او ارفکشد پنځه ديرش کالَ ژوندون وکړ شالح ترِ پيدا شه ۱۳ او ارفکشد پس له
پيدا کيدلو دَ شالح دري دَپاسَ څلور سوَ کالَ ژوندون وکړ او ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۱۴ ۱۵ ۱۴ او شالح ديرش کالَ ژوندون وکړ عيبر ترِ پيدا شه ۱۵ او شالح پس له پيدا
کيدلو دَ عيبر دري دَپاسَ څلور سوَ کالَ ژوندون وکړ ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۱۶ ۱۷ ۱۶ او عيبر څلور ديرش کالَ ژوندون وکړ پلج ترِ پيدا شه ۱۷ او عيبر پس له
پيدا کيدلو دَ پلج ديرش دَپاسَ څلور سوَ کالَ ژوندون وکړ ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۱۸ ۱۹ ۱۸ او پلج ديرش کالَ ژوندون وکړ رعو ترِ پيدا شه ۱۹ او پلج پس له پيدا کيدلو
دَ رعو نه دَپاسَ دوه سوَ کالَ ژوندون وکړ ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۲۰ ۲۱ ۲۰ او رعو دو ديرش کالَ ژوندون وکړ سروج ترِ پيدا شه ۲۱ او رعو پس له
پيدا کيدلو دَ سروج اوه دَپاسَ دوه سوَ کالَ ژوندون وکړ ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۲۲ ۲۳ ۲۲ او سروج ديرش کالَ ژوندون وکړ ناحور ترِ پيدا شه ۲۳ او سروج پس
له پيدا کيدلو دَ ناحور دوه سوَ کالَ ژوندون وکړ ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۲۴ ۲۵ ۲۴ او ناحور نه ويشت کالَ ژوندون وکړ ترح ترِ پيدا شه ۲۵ او ناحور پس له
پيدا کيدلو دَ ترح يو سل نولس کالَ ژوندون وکړ ځامن او لونړه ترِ پيدا شول
۲۶ ۲۶ او ترح اويا کالَ ژوندون وکړ ابرام او ناحور او هاران ترِ پيدا شول
۲۷ ۲۷ او دَ ترح پيړۍ دا دي له ترح نه ابرام او ناحور او هاران پيدا شول او له هارانَ
۲۸ لوط پيدا شه ۲۸ او هاران دَ وړاندِ دَ خپل پلار ترح دَ خپل پيدايښت په زمکه کښ په اوړ دَ

۲۹ کسدیانو کښې مړ شه ۲۹ او ابرام او ناحور ښځې ښځې واخستلې دَ ابرام دَ
ښځې نوم ساري وه او دَ ناحور دَ ښځې نوم مِلکاه لور دَ هاران چه پلار دَ ملکا
۳۰ ۳۱ اوِ پلار دَ یسکاه وه ۳۰ او ساري شنډه وه اولاد ئې نه وه ۳۱ او تَرح خپل زوي
ابرام او لوط زوي دَ هاران خپل نمسي او خپله نګوړ ساري دَ خپل زوي ابرام
ښځې واخستل او سره ووتل له اوُر دَ کسدیانو نه چه دَ کنعان زمکې ته لاړ
۳۲ شي نو حاران له راغلل او هلته ډیره شول ۳۲ اوِ دَ تَرح عمر دوه سوَ پنځه
کالَ وه او تَرح په حاران کښې مړ شه ✤

# دولسم باب

۱ ۱ او خداوند ابرام ته ووِ چه له خپلې زمکې نه او له خپلو خویشانو اوُ دَ خپل پلار
۲ له کورَ هغَه زمکې ته چه زه تا ته ښیم لاړ شه ۲ او تا به لوي قام کړم تا له به
۳ برکت درکړم اوِ ستا نوم به لوي کړم او مبارک به شي ۳ او ستا مبارک کونکي به
مبارک کړم او ستا په لعنت کونکي به لعنت وکړم او ټولې قبیلې دَ زمکې به له تا
۴ نه برکتې مومِي ۴ نو ابرام لاړ لکه چه خداوند هغه ته ویلي وُو او لوط ورسره لاړ او
۵ ابرام په وقت دَ بهر تللو دَ هغه کښې له حاران نه دَ پنځه اویا کالو وه ۵ او ابرام
خپله ښځه ساري او خپل وراره لوط او ټول مالونَ چه ئې حاصل کړي وُو او هغه
کسان چه ئې په حاران کښې اخِستي وُو او ووتل چه دَ کنعان زمکې ته لاړ
۶ شي نو دَ کنعان زمکې ته راغلل ۶ او ابرام په زمکې تېر شه تر شکم ځاي دَ
۷ موري بلوط پوري او هغه وقت کنعانیان په زمکه کښې وُو ۷ او خداوند ابرام ته
ښکاره شه وئې ویل چه دا زمکه به ستا اولاد لره ورکړم او هلته ئې مذبح
۸ یَهُوَهْ له چه هغه ته ښکاره شوي وه جوړه کړه ۸ او له هغه ځايَ هغه غره
ته چه دَ بیتِ ایل نورخاته طرف ته وه وکوچیده او خپل تنبو ئې ودراوه
بیتِ ایل نورپریواته ته او عايِ نورخاته ته او هلته ئې مذبح خداوند له جوړه
۹ کړه او په نامه دَ خداوند ئې دعا وکړه ۹ او ابرام کوچ وکړ اوِ سهیل ته پله پسې
۱۰ وکوچیده ۱۰ او په زمکه کښې قحط شه او ابرام مصر ته کوز شه چه هلته مسافري
۱۱ وکړي ځکه چه په زمکه کښې قحط سخت وه ۱۱ او داسې وشه چه نزدې شه چه

مصرته داخل شي خپلي ښځي ساري ته ئي ووِ چه گوره زه پوهیږم چه ته په
١٢ لیدلو کښ ښائسته ښځه یي ١٢ او داسي به شي چه مصریان تا ووینِي وبه وايي
١٣ چه دائ ښځه دَه او ما به ووژني او تا به ژوندئ پريږدي ١٣ ته ووايي چه زه دَ
هغه خور یم چه ستا په سبب له ما سره ښه وشي او ځما ځان ستا په سبب
١٤ ژوندي پاتي شي ١٤ او داسي وشه چه ابرام مصرته داخل شه چه مصریانو ښځه
١٥ ولیده چه هغه ډیره ښائسته ده ١٥ او دَ فرعون سردارانو هغه ولیده فرعون ته ئي صفت
١٦ وکړ او ښځه دَ فرعون کورته واخستلي شوه ١٦ او دَ ابرام سره ئي دَ هغي په خاطر احسان
وکړ او هغه له کډي او غویان او خره او مریونَ او وینځي او خري او اوښان وشول
١٧ ١٧ خداوند فرعون او دَ هغه کور په سبب دَ ساري دَ ابرام دَ ښځي په لویو وهلو سره ووهل
١٨ ١٨ او فرعون ابرام وباله او وئ ویل چه داڅه دِي چه له ما سره دِ وکړه ولي دِ ما ته و نه
١٩ ښائل چه داځما ښځه ده ١٩ ولي دِ وويل چه ځما خور ده چه هغه ځان له مِ واخستله
٢٠ چه ځما ښځه شي نو گوره خپله ښځه واخله اوځه ٢٠ او فرعون خپلو سړو ته
په هغه حکم وکړ چه هغه او ښځه ئي او ټول چه دَ هغه وه و ئي لیږل ✣

# دیارلسم باب

١ ١ او ابرام او ښځه ئي او ټول چه دَ هغه وه او لوط ور سره له مصر نه
٢ سهیل طرف ته وختل ٢ او ابرام په ډنگرو او په سپینو او سرو زرو کښ ډیر
٣ بختور وه ٣ او په منزلونو خپلو له سهیل نه بیت‌ایل ته لاړ هغه ځاي
٤ ته چه دَ هغه تنبو وړومبي وه په مینځ دَ بیت‌ایل او دعي کښ ٤ دَ مذبح
ځاي ته چه وړومبي ئي هلته جوړه کړي وه او ابرام هلته په نامه دَ یَهوَه
٥ دعا وکړه ٥ او هم لوط لره چه له ابرام سره به ته کندکونَ او غویان او تنبوان
٦ وُو ٦ او زمکي زغم کولي نه شه چه سره وسي چه دَ هغوي مال ډیروه نو دَ
٧ سره اوسیدلو تواني و نه شه ٧ او په مینځ دَ غوبنو دَ ډنگرو دَ ابرام او دَ غوبنو
دَ ډنگرو دَ لوط جګړه وشوه او کنعاني او فرزي په هغه وقت په زمکه کښ
٨ اوسیدل ٨ نو ابرام لوط ته ووِ چه ځما او ستا په مینځ کښ او ځما
دَ غوبنو او ستا دَ غوبنو په مینځ کښ جګړه و نه شي ځکه چه مونږ وروڼه

یو ۹ ټوله زمکه ستا دَ وړاندِ نه ده څَه؟ له ما نه بیل شه که نه او که ته کینړ ۹
طرف ته ځي نو زه ښي طرف ته ځم او که ته ښي ته نو زه کینړ ته ۱۰ او لوط ۱۰
خپلي سترګي پورته کړي او و ئي لید چه ټول میدان دَ یردین ټوله خروب وه پخوا
له هغي نه چه خداوند سدوم او عموراه هلاک کړي وُو دَ خداوند دَ باغ په شان
دَ مصر دَ زمکي په شان چه ته صوعر ته راځي ۱۱ او لوط ټول میدان دَ یردین ۱۱
ځان له خوښ کړ او لوط نورخاته ته وکوچیده نو یو له بلَ بیل شول ۱۲ اوابرام ۱۲
دَ کنعان په زمکه کښ وه اوسید او لوط دَ میدان په ښهرونو کښ وه اوسید او دَ
سدوم په طرف ئي خپل تنبو ودروه ۱۳ او دَ سدوم سړي شریران وُو او ۱۳
خداوند ته ډیر خطاکاران وُو ۱۴ او خداوند ابرام ته وویِ پس له بیلیدلو دَ لوط له ۱۴
هغه نه خپلي سترګي پورته کړه او له هغه ځایَ چه ته هلته ئي قطب ته او
سهیل ته او نورخاته او نور پریواته ته وګوره ۱۵ ځکه چه ټوله زمکه چه وینی تا ۱۵
له او ستا اولاد له به ئي تر ابدَ پوري ورکړم ۱۶ او ستا اولاد به دَ زمکي دَ ۱۶
خاورو په څیر کړم چه څوک دَ زمکي خاوري شمیرلي شي ستا اولاد به هم
وشمیرلي شي ۱۷ پاسه او په زمکه کښ په اوږدوالي او په پلنوالي دَ هغي کښ ۱۷
ګرزه چه در به ئي کړم ۱۸ نو ابرام وکوچید او راغي او وه اوسید دَ ممرئِ بلوطو ۱۸
ځنګه چه په حبرون کښ دي او هلته ئي مذبح خداوند له جوړه کړه ٭

## څوارلسم باب

۱ او واسي وشه دَ امرافل بادشاه دَ شنعار اریوک بادشاه دَ الاسار او کدور ۱
لاعومر بادشاه دَ عیلام او تدعال بادشاه دَ قومونو په ورځو کښ ۲ چه هغوي ۲
برع دَ سدوم بادشاه او برشع دَ عموراه بادشاه او شناب دَ ادماه بادشاه او
شمیبر دَ صبویم بادشاه او دَ بلع بادشاه چه صوغر دي ور سره ئي جنګ جوړ کړ
۳ او هغوي ټول دَ سدّیم په ژوره کښ چه دَ مالګي دریاب دي جمع شول – ۳
۴ هغوي دولس کالَ دَ کدور لاعومر خدمت کاوه او په دیارلسم کال یاغیان ۴
شول ۵ او په څوارلسم کال کښ کدور لاعومر راغي او هغه بادشاهان چه ور ۵
سره وُو او رفائیان ئي په عشتروث قرنیم کښ او زوزیان په هام کښ او

۶ ايميان په شاوه قرياتايم کښې ووهل ۶ او هم حوريان په خپل غره سيعر کښې
۷ تر ايل پاران پورې چه صحرا څخه دي ۷ بيا وجاروتل او عينِ مشفاط ته چه
قاديش دي راغلل او دَ عماليقيانو ټول ملک او هم اموريان چه په حَصَصون
۸ تامار کښې اوسيدل و يُې وهل ۸ او دَ سدوم بادشاه او دَ عموراه بادشاه او
دَ ادماه بادشاه او دَ صبويم بادشاه او بادشاه دَ بلع چه صوعر دي ووتل
۹ او دَ سدّيم په ژوره کښې يُې ورسره جنګ جوړ کړ ۹ کدورلاعومر دَ عيلام بادشاه
سره او تدعال دَ غير قومونو بادشاه او امرافل دَ شنعار بادشاه او اريوک
۱۰ دَ الاسار بادشاه څلور بادشاهانو له پنځهٔ سره ۱۰ او دَ سدّيم په ژوره کښې
دَ خُمر کوهِي ډير وُو او دَ سدوم او دَ عموراه بادشاهان وتښتيدل په هغه
۱۱ ځاي کښې ولويدل او باقي پاتي شوي غر ته وتښتيدل ۱۱ او ټول مالونَ دَ سدوم
۱۲ او دَ عموراه او دَ هغوي ټول خوراکونَ يُې واخستل او لاړل ۱۲ او لوط دَ ابرام
۱۳ وراره او مالونه يُې واخستل او لاړل چه هغه په سدوم کښې اوسيده ۱۳ او
څوک بچ شوي راغي او عبري ابرام يُې خبر کړ او هغه بلوطو څخه دَ ممريُې
اموري ورور دَ اشکول او ورور دَ عانير اوسيده او هغوي يره داران دَ
۱۴ ابرام وُو ۱۴ او چه ابرام واوريدل چه ورور يُې قيد کړي شه له خپلو
اموخته شويو خانه زادو يُې دري سوَ اتلس سړي په وسله کړل او تر دانَ
۱۵ پورې يُې ورپسي کړل ۱۵ او شپه يُې په هغوي وويشله هغه او خپل مريونه
نو مات يُې کړل او ورپسي شول تر حوباه پورې چه دَ دمشق کينډ طرف دي
۱۶ ۱۶ او ټول مالونه يُې راوګرزول او خپل ورور لوط يُې هم او دَ هغه مالونه
۱۷ او هم ښځي او قام يُې راوګرزوه ۱۷ او دَ سدوم بادشاه دَ هغه دَ ملاقات
دَپارَ ووت پس له جاروتلو دَ ماتولو دَ کدورِ لاعومر او دَ بادشاهانو چه ور
۱۸ سره وُو دَ شاوه ژورې ته چه ژوره دَ بادشاه ده ۱۸ او ملکِ صدق دَ شاليم
۱۹ بادشاه ډوډيُ او شراب بهر راوړل او هغه دَ الله تعالیٰ کوهين وه ۱۹ او هغه
يُې مبارک کړو يُې ويل چه مبارک دي ابرام الله تعالیٰ ته چه مالک دي دَ آسمانونو
۲۰ او دَ زمکي ۲۰ او مبارک دي الله تعالیٰ چه ستا دشمنان يُې ستا په لاس وسپارل

نو لسمه له هر څیز نه ئې ورکړله ٢١ او دَ سدوم بادشاه ابرام ته ووِ چه سړِي ٢١
ما له راکړه او مالونَ خپل ځان له واخله ٢٢ او ابرام دَ سدوم بادشاه ته ووِ ٢٢
چه خپل لاس مِ یَهُوَهُ الله تعالیٰ مالک دَ اسمان او دَ زمکې ته پورته کړ ٢٣ چه ٢٣
له تار نه تر تسمې دَ څپلۍ پوري او نه له ټول هغه چه تا له دِي هیڅ به وانه خلم
چه و نه وایې چه ابرام مِ غنِي کړ ٢٤ ما له هیڅ نشته سوا له هغه چه ځوانانو ٢٤
خوړلِي دِي او حصه دَ سړو چه له ما سره تلِي وُو عانیر او اشکول او ممرېٔ
هغه دِ خپله بخره واخلِي +

# پنځلسم باب

١ پس له دي خبرو دَ خداوند کلام په مکاشفې کښِ ابرام ته وشه وئې ویل چه ١
اي ابرامَ مه ویریږه چه زه ستا ډال یم ستا ډیر لوي اجر یم ٢ او ابرام وویل ٢
چه اي خداوند یَهُوَهُ ما له به څه راکړِي چه زه بي اولادَ تیریږم او څما دَ کور
مالک دمشقِي اِلیعزر دي ٣ او ابرامِ ووِ گوره ما له دِ اولاد نه دي راکړِي او گوره ٣
څما خانه‌زاد څما وارث دي ٤ او گوره دَ خداوند کلام هغه له راغي وئې ویل دي ٤
ستا وارث کیږِي نه بلکه هغه چه ستا له پښتَ نه پیدا شِي هغه به ستا وارث
شِي ٥ بیا ئي هغه بهر وویست وئې ویل چه اسمان ته وگوره او ستورِي وشماره ٥
که هغه شمارلِي شي او ورته ئې ووِ ستا اولاد به دا رنګ شِي ٦ او هغه په ٦
یَهُوَهُ باندِ ایمان راوړ نو هغه ئې په صداقت حساب کړ ٧ او هغه ته ئې ووِ ٧
چه زه یَهُوَهُ یم چه ته مِ له اورَ دَ کسدیانو نه راویستلِي یې چه دا زمکه په وراثت
تا له درکړم ٨ او وئې ویل چه اي خداوند یَهُوَهُ څنګه به زه پوه شم چه وارث به ئې ٨
شم ٩ نو ورته ئې وویل چه څما دَ پارَ دري کلنې سخوندر او دري کلنۍ بیزه او دري ٩
کلنې گډ او قمرِي او دَ کونترِي بچِي واخله ١٠ او هغه خپل ځان له هغوي ټول واخستل
او هغوي ئې په مینځ دوه ټوکرِي کړِي او هره ټوکره ئې په برابر دَ بلې ټوکرِي کښِ
کیښودله لیکن مرغان ئې ټوکرِي نه کړل ١١ او مرغان په هغو جثو باندِ کښته راغلل ١١
او ابرام هغوي وشړل ١٢ او چه نمر په پریواته شه په ابرام باندِ کلک خوب غلبه ١٢
شه او گوره دَ لوي تیارِي هیبت په هغه باندِ راغي ١٣ او ابرام ته ئې وویل ١٣

چه ښه پوه شه چه ستا اولاد به په هغې زمکې کښې چه دَ هغوي نه ده مسافران
شي او دوي به دَ هغوي مریي‌توب وکړي او هغوي به دوي له څلور سوَ کالَ تکلیف
۱۴ ورکړي ۱۴ بیا هغه قوم چه مریي‌توب ئې کوي زه به ئې انصاف وکړم او پس له
۱۵ هغه به هغوي له ډیرو مالونو سره ووزي ۱۵ او ته به خپلو پلرونو ته په سلامتي لاړ
۱۶ شي او په ښه زوروالي کښې به خښ کړی شي ۱۶ په څلورمه پیړئ کښې به هغوي
۱۷ بیا دلته راشي ځکه چه تر اوسه پورې لاګناه دَ اموریانو تمامَ شوي نه ده ۱۷ او
داسې وشوه چه نمر پریوت او تیاره شوه ګوره لوګي کوونکي تنور او دَ اور مشال
۱۸ دَدې ټوکړو له مینځَ تیر شه ۱۸ په هغه ورځ کښې خداوند ابرام سره وعده وکړه
وئې ویل چه دا زمکه به دَ مصر له سیند نه تر لویَ سیندَ پورې چه دَ فرات
۱۹ ۲۰ سیند دې ستا اولاد له ورکړم ۱۹ قنیان او قنیزیان او قدمونیان ۲۰ او حثیان
۲۱ او فرزیان او رفایان ۲۱ او اموریان او کنعانیان او جرجاشیان او یبوسیان ❊

# شپاړسم باب

۱ ۱ او ساري دَ ابرام ښځې ده له اولاد رانه وړ او دَ هغې مصرې وینځه وه چه
۲ نوم ئې هاجار وه ۲ نو ساري ابرام ته ووِ ګوره که زه خداوند له راوړو نه بنده کړې
یم نو راشه که نه څما وینځې له ورشه چه له هغې نه څما کور آباد شي او ابرام
۳ دَ ساري خبره واوریده ۳ او ساري دَ ابرام ښځې خپله وینځه هاجار مصرې واخستله
پس له لسو کالو دَ استوګې دَ ابرام دَ کنعان په زمکه کښې او هغه ئې خپل
۴ خاوند ابرام له ورکړله چه ښځه ئې شي ۴ نو هغه هاجار له ورغې نو حامله
شوه او چه ئې ولیده چه حامله شوه میرمن ئې دَ هغې په نظر کښې سپکه
۵ ښکاره شوله ۵ او ساري ابرام ته ووِ چه څما ظلم دِ په تا وشي ما خپله وینځه
ستا په غیږ کښې درکړه نو چه ئې ولیدل چه حامله شوه زه دَ هغې په نظر
۶ کښې سپکه ښکاره شوم خداوند دِ څما او ستا په مینځ کښې انصاف وکړي ۶ او
ابرام ساري ته ووِ چه ګوره ستا وینځه ستا په لاس کښې ده نو ورسره وکړه څه
چه ستا په نظر کښې ښه وِي نو چه ساري هغه ذلیله کړله نو له مخې ئې وتښتیدله
۷ ۷ او دَ خداوند فرښتې هغه په بیابان کښې دَ اوبو په چینې په هغه چینې دَ شور په

۸ لاري کښې ده بیاموندله ۸ او وئې ویل اې هاجارې دَ سارې وینځې له کومَ راغلې
۹ ئې او چرته ځې هغې ووِ چه دَ خپلې میرمنې سارې له مخه تښتیدونکې یمه ۹ او دَ
خداوند فرښتې هغې ته ووِ چه خپلې میرمنې ته وجاروزه او دَ هغې دَ لاس دَ لاندې
۱۰ عاجزې وکړه ۱۰ او دَ خداوند فرښتې هغې ته ووِ چه ستا اولاد به ډیر زیات کړم چه
۱۱ له ډیروالې نه شمارلې نه شي ۱۱ او دَ خداوند فرښتې هغې ته ووِ چه گوره ته حامله
شوې یې او ځوې به راوړې او دَ هغه نوم به اسماعیل وواې ځکه چه خداوند ستا
۱۲ تنکسا اوریدلې ده ۱۲ او هغه به په سړو کښې وحشې خر شي دَ هغه لاس به په هر یو
۱۳ شي او دَ هر یو لاس په هغه او دَ وړاندِ دَ ټولو خپلو وروڼو به اوسي ۱۳ او
هغې دَ خداوند نوم کیښود چه ورسره ئې خبرې وکړې اتا ایل روې ځکه چه ئې
۱۴ وویل چه ما هم دلته وریسې وکتل چه ما ولیده څه؟ ۱۴ ځکه هغه چینه په
۱۵ بیرلحې روئې وبللې شوه گوره په مینځ دَ قادیش او دَ بارد کښې ده ۱۵ او هاجارِ
دَ ابرام دَپارَ زوې راوړ او ابرام دَ خپل زوې نوم چه هاجار وله راوړې وه
۱۶ اسماعیل کیښود ۱۶ او ابرام چه هاجار اسماعیل ابرام له راوړې وه دَ
شپږ اتیا کالو وه ✣

## اولسم باب

۱ ۱ او چه ابرام دَ نهَ نوې کالو وه نو خداوند ابرام ته ښکاره شه او ور ته ئې
۲ ووِ چه زه الله القادر یم ځما دَ وړاندِ لاړ شه او کامل شه ۲ ځما او ستا په
۳ مینځ کښې وعده کوم تا به په زیاتې زیات کړم ۳ او ابرام پړمخې پریوت او الله
۴ ورسره خبرې وکړې وئې ویل ۴ گوره له تا سره ځما وعده ده چه ته دَ ډیرو
۵ قامونو پلار به شي ۵ پس له دې ستا نوم به ابرام وبللې نه شي بلکه ستا
۶ نوم به ابراهام شي ځکه چه ته مِ دَ ډیرو قامونو پلار کړې یې ۶ او تا به ډیر
۷ زیات بارور کړمَ او له تا نه به قامونه وباسم له تا نه به بادشاهان ووزي ۷ او
خپله وعده به قائمه کړم ځما او ستا په مینځ کښې او پس له تا ستا دَ اولاد
په مینځ کښې دَ هغوې په پیړو کښې دَ همیشه وعدې دَپارَ چه ستا الله شم او ستا
۸ دَ اولاد دَپارَ پس له تا نه ۸ او زه به تا له او پس له تا نه ستا اولاد له هغه

زمکه ستا دَ مسافرئ درکړم ټوله زمکه دَ کنعان دَ ابدي قبضي دَپارَ او زه به دَ
۹ هغوی الله شم ۹ او الله ابراهام ته ووِ چه ته به خما وعده وساتي ته او پس له تا
۱۰ نه ستا اولاد دَ هغوي په پيړو کښ ۱۰ دا خما وعده ده چه تاسو به يي ساتئ خما
او ستاسو په مينځ کښ او پس له تا نه ستا دَ اولاد په مينځ کښ هر يو نر دِ له
۱۱ تاسو سنت کړي شي ۱۱ تاسو به سنت کړي شئ او دَ وعدي نښه به شي خما او
۱۲ ستاسو په مينځ کښ ۱۲ زوي دَ اتهؤ ورځو له تاسو نه دِ سنت کړي شي هر نر
ستاسو په پيړو کښ پيدا شوي دَ کور او زرخريده له هر مسافر نه چه ستا له
۱۳ اولادَ نَه وِي ۱۳ هغه چه ستا په کور کښ پيدا شوي وي او هغه چه ستا په بيعَ
واخستي شي ضرور به سنت کړي شي او خما وعده به ستاسو په اولاد کښ
۱۴ ابدي وعده شي ۱۴ او ناسنت نر چه سنت کړي شوي نه وي هغه سړي به له خپله
قامَ پريکړي شي خما وعده يي ماته کړي ده
۱۵ ۱۵ او الله ابراهام ته ووِ خپلي ښځي ساري ته دَ هغي نوم ساري مه وايه
۱۶ بلکه دَ هغي نوم دِ ساراه وِي ۱۶ او هغي له به برکت ورکړم او هم زوي له هغي نه
به تا له درکړم هم مبارکه به يي کړم او هغه به دَ قامونو مور شي دَ امتونو
۱۷ بادشاهان به له هغي نه شي ۱۷ او ابراهام پر مخ پريوت او وئي خندل او په
خپل زړه کښ يي ووِيل چه له سل کلني نه زوي پيدا کيدي شي خه؟ او ساراه
۱۸ چه نوي کلنئ ده راوړلي شي خه؟ ۱۸ او ابراهام الله ته ووِ چه کاشکي اسماعيل ستا
۱۹ دَ وړاندِ ژوندون وکړي ۱۹ او الله ووِ په تحقيق ستا ښځه ساراه به ستا دَپارَ زوي
راوړي او دَ هغه نوم به اسحاق ووايي او خپله وعده له هغه سره دَ هميشه وعدي
۲۰ دَپارَ او پس له هغه نه دَ هغه دَ اولاد دَپارَ به قائمه کړم ۲۰ او اسماعيل دَپارَ
ما ستا اوريدلي دي کوره هغه مِ مبارک کړ او هغه به بارور کړم او ډير
زيات به يي کړم دولس سرداران به تر پيدا شي او هغه به لوي قام کړم
۲۱ ۲۱ ليکن خپله وعده به اسحاق سره قائمَ کړم ستا دَپارَ به يي به دي
۲۲ وقت کښ په راتلونکي کال کښ ساراه راوړي ۲۲ او الله چه دَ ابراهام سره
۲۳ خبري خلاصي کړي نو تر وخوت ۲۳ نو ابراهام خپل زوي اسماعيل واخست او ټول

دَکور پیدا شوِي او تول زرخریده هر نر دَ ابراهام دَ کوره هم په دغه ورځ کښې
۲۴ ني سنّت کړل.لکه چه الله ورسره خبري کړي وي ۲۴ او ابراهام نه نوي کلني وُ
۲۵ چه سنّت کړي شه ۲۵ او اسماعيل زوي ئي دَ دیارلس کالو وه چه سنّت کړي شه
۲۶ ۲۷ ۲۶ هم په هغه ورځ کښې ابراهام او اسماعيل زوي ئي سنّت شول ۲۷ او تول سړي
دَ هغه دَکور پیدا شوِي دَکور او له مسافرو زرخریدو ورسره سنّت شول ＊

## اتلسم باب

۱ ۱ او خداوند هغه ته دَ ممرئِ بلوطو څخه ښکاره شه او دي په دروازه دَ
۲ تنبو دَ ورځي په ګرمئِ کښې ناست وه ۲ نو خپلي سترګي ئي پورته کړي و ئي کتل
خه ګورِي چه دري سړِي ورڅخه ولاړ دِي نو چه ئي وليدل دَ هغوي بللو
۳ له ئي دوکړ دَ تنبو له دروازي نه وزغليده او په زمکه ئي سجده وکړه ۳ او
وئي ويل چه اي خداوندَ که مِ ستا په نظرکښې فضل موندلي وِي نو له
۴ خپلَ مرلي نه مه تيريږه ۴ لږ اوبه دِ راولي شي او خپلي پښي ووينځئِ او دَ
۵ وني لاندِ تکيه وکړئِ ۵ او توکړه دَ ډوډئِ به راوړم چه خپل زړونه خوشحال
کړئِ پس له هغه تير شئِ څکه چه تاسو خپل مرلي څخه راغلي يئِ
۶ نو هغه وويل چه داسي وکړه لکه چه ويلي دِ دِي ۶ نو ابراهام زر تنبو
ته ساراه له لاړ و ئي ويل چه تلوار وکړه دري اوړي ميده اوړه واغږه
۷ او ډوډئِ تيارَوه ۷ او ابراهام غواوُ ته وزغليده او تنکي او ښه خسي ئي
۸ ونيوه او ځوان له ئي ورکړ او تلوار ئي وکړه چه تيار ئي کړي ۸ او کُچ او پئ
او خسي چه ئي تيار کړي وه واخستل او دَ هغوي دَ وړاندِ ئي کيښودل او
۹ هغوي څخه دَ وني لاندِ ولاړ وه او هغوي وخوړل ۹ نو هغه ته ئي ووِ
۱۰ چه ستا ښځه ساراه چرته ده او هغه ووِ ګوره هغه په تنبو کښې ده ۱۰ نو
و ئي ويل چه ضرور به دَ ژوندون دَ وقت په شان تا ته وګرځم او ګوره ستا
ښځي ساراه له به زوي وِي او ساراه اوريدونکي وَه دَ تنبو په دروازه کښې
۱۱ او هغه ئي دَ ورستو وه ۱۱ او ابراهام او ساراه زاړه او دَ ډيرو ورځو وُو
۱۲ او له ساراه نه دَ ښځو عادة قطع شوي وه ۱۲ او ساراه په زړه کښې وخندل

وني ويل پس چه زه زړه شوي يم ما له خوشحالتيا به وشي څه؟ اوخاوند مِ هم زوړ
۱۳ دي ۱۳ نو خداوند ابراهام ته ووِ چه ساراه ولي وخندل و ني ويل چه په تحقيق
۱۴ به راوړم څه؟ چه زړه شوي يم ۱۴ خداوند ته څه څيز گران دي په معين وقت
کښې به تا ته زه راوگرزوم چه موسم راشي او ساراه له به زوي وشي۔
۱۵ ۱۵ او ساراه انکار وکړ و ئي ويل چه ما نه دي خندلي څکه چه وويريدله نو
هغه ووِ نه بلکه تا وخندل
۱۶ ۱۶ او هغه سړي له هغه ځايَ پاسيدل او سدوم طرف ته ني مخ کړ او
۱۷ ابراهام ورسره لاړ چه جلب ورسره وکړي ۱۷ او يَهْوَهْ ووِ هغه چه زه ئي کوم له ابراهام
۱۸ نه به ئي پټ کړم څه؟ ۱۸ او ابراهام به ضرور لوي قام او زورَور شي او ټول قومونه
۱۹ دَ زمکي به په ده کښې مبارک شي ۱۹ څکه چه هغه پيژنم چه دي به خپلو ځامنو
او خيل کور ته پس له هغه نه امر وکړي چه هغوي دَ خداوند لار وساتي صدق او
۲۰ انصاف کولو دَپارَ چه خداوند ابراهام له راوړي هغه چه ئي ورسره خبري کړي وي ۲۰ او
خداوند ووِ چه شور دَ سدوم او دَ عموراه ډيردي او خطا دَ هغوي ډيره سنگينه
۲۱ دَه ۲۱ ښکته به لاړ شم او وبه گورم چه هغوي کړي دِي په مثل دَ هغه شور
۲۲ چه ما ته رسيدلي دي او که داسي نه وِي وبه پوهيږم ۲۲ او سړي له هغه
۲۳ ځايَ وجاروتل او سدوم طرف ته لاړل او ابراهام دَ خداوندُ وړاندِ ولاړوه ۲۳ نو
۲۴ ابراهام نژدي شه و ئي ويل چه صادق له بد سره به هلاک کړي څه؟ ۲۴ احتمال
دي چه په ښهر کښې پنځوس تنه صادقان وِي نو دا مکان به هلاک کړي
۲۵ او بچ به ئي نکړي څه؟ په سبب دَ پنځوسو صادقانو چه په هغه کښې دِي ۲۵ دا دي
لتانه لري وِي چه په مثل دَدي کار وکړي چه هلاک کړي صادق له بد
سره او صادق به په مثل دَ بد شي دا دي لتانه لري وي دَ ټولي زمکي منصف
۲۶ به انصاف نه کوِي څه؟ ۲۶ نو خداوند ووِ که زه په سدوم کښې پنځوس صادقان
دَ ښهر په مينځ کښې بيا موم نو زه به ټول مکان دَ هغوي په سبب خلاص کړم
۲۷ ۲۷ او ابراهام ځواب ورکړ او و ني ويل گوره چه ما په خبرو کولو دَ خداوند سره
۲۸ شروع وکړه او زه خاوري او ايري يم ۲۸ احتمال دي چه له پنځوسو صادقانو نه

پنځه کم شي نو ټول ښهر به دَ پنځهٔ دَپارَ هلاک کړي څه؟ نو وئي ويل که هلته
٢٩ پنځه څلويښت بياموم هلاک به ئي نه کړم ٢٩ نو دوباره هم ورسره په خبرو شه
و ئي ويل چه احتمال دي چه هلته څلويښت بياموندلي شي نو و ئي ويل دَ څلويښتو
٣٠ دَپارَ به نه کوم ٣٠ او وئي ويل چه خداوند دِ خپه نه شي نو زه به خبري کوم
احتمال دي چه هلته ديرش بياموندلي شي نو و ئي ويل زه به نه کوم که مِ
٣١ هلته ديرش بياموندل ٣١ نو و ئي ويل چه ګوره ما خداوند سره دَ خبرو کولو
شروع وکړه احتمال دي چه هلته شل بياموندلي شي نو و ئي ويل چه دَ شلو
٣٢ دپارَ به ئي هلاک نه کړم ٣٢ نو و ئي ويل چه که خداوند خپه نه شي نو فقط يو
وار به خبري وکړم احتمال دي چه هلته لس وموندلي شي نو و ئي ويل چه
٣٣ دَ لسو دَپارَ به ئي هلاک نه کړم ٣٣ او خداوند لاړ چه له خبرو نه ابراهام سره
فارغ شه او ابراهام خپل ځاي ته وجاروت ❊

# نولسم باب

١ ١ نو دوه فرښتي دَ نماښام په وقت کښ سدوم له راغلي او لوط دَ سدوم په
دروازه کښ ناست وه چه لوط وليدلي نو مخي ته ئي ودريد او په مخ ئي زمکي ته
٢ سجده وکړه ٢ او و ئي ويل ګورئ اي څما خاوندانو دَ خپل غلام کور ته وګرزئ
او شپه کړئ او خپلي پښي ووينځئ او سحر وقتي پورته شئ او به خپله لار روان
٣ شئ نو هغوي ووِ چه نه بلکه په ارت ځاي کښ به شپه کړو ٣ نو دَ هغوي ئي
ډير منّت وکړ نو ور وګرزيدلي او ورکره داخلي شولي او دَ هغوي دَپارَ ئي ميلمستيا
٤ تياره کړله او پتيره ډوډئ ئي پخه کړه نو و ئي خوړله ٤ او چه لا اوده شوي نه
وُو سړي دَ سدوم دَ ښهر له ځوانَ تر زاړه پوري ټول قام له هر طرفَ له کورَ
٥ چاپير شول ٥ او لوط ته ئي آواز وکړ هغه ته ئي ووِ هغه سړي چه نن شپه تا
٦ څخه داخل شوِي دِي چرته دِي موږ له ئي را وباسه چه هغوي وپيژنو ٦ او لوط
٧ هغوي له دروازي ته راووت او په ځان پسي ئي دروازه پوري کړله ٧ او و ئي ويل
٨ چه اي ورونړو شرارت مه کوئ ٨ ګورئ څما دوه لونړه دِي چه سړي ئي نه دي
ليدلي هغوي به تاسو لره راوباسم او ورسره داسي وکړئ چه ستاسو په نظر کښ

غوره وِي فقط دي سړو سره هيڅ مه کوئ ځکه چه ځما دَ چت دَ سوري لاندِ راغلي
٩ دي ٩ او هغوي ووِ چه ورستو شه او وئي ويل دا يو دَ اوسيدو دَپارَ راغلي دي،
غواړي چه منصفي وکړي اوس به له تا سره له هغوي نه بدعمل وکړو نو په سړي
١٠ يعني په لوط په سختئ زور وکړ او نژدي شول چه دروازه ماته کړي ١٠ او سړو
خپل لاسونه اوږده کړل لوط ئي ځان ځخه کورته ننه‌يست او دروازه ئي بنده
١١ کړله ١١ او هغه سړي چه دَ کور دروازي ځخه وُو له وړوکي نه تر لويه پوري رانده
١٢ ئي کړل نو عاجز شول چه دروازه بيامومي ١٢ او سړو لوط ته ووِ چه دلته ستا
بل څوک شته زوم او ستا ځامن او ستا لونړه او ټول هغه چه په ښهرکښ ستا
١٣ دي له دي مقامَ وباسه ١٣ چه مونږ دَ دي مقام هلاکونکي يو ځکه چه شور ئي
١٤ دَ خداوند دَ وړاندِ لوي شوي دي او خداوند مونږ راليږلي يُو چه هغه هلاک کړو ١٤ نو
لوط ووت او خپلو زومانو ته چه دَ لونړو ئي اُخستونکي وُو خبري ئي وکړي نو
و ئي ويل چه پاسئ له دي ځايَ ووزئ ځکه چه خداوند دا ښهر هلاکوِي ليکن دَ
١٥ خپلو زومانو په نظر کښ خنديدونکي ښکاره شه ١٥ او چه سحر شه فرښتو په
لوط تلوار وکړه و ئي ويل چه پاسه خپله ښځه او دوه لونړه خپلي چه حاضري
١٦ دي واخله چري نه وِي چه دَ ښهر په عذاب کښ هلاک شي ١٦ او چه ئي ډيل
کاوه نو سړو ئي لاس ونيوه او دَ هغه دَ ښځي لاس او دَ هغه دَ دواړو لونړو لاس
ئي ونيول چه دَ خداوند مهربانکي په ده باندِ وَه او هغه ئي وويست او بهر له ښهرَ
١٧ ئي پرينبود ١٧ او داسي وشوه چه هغوي ئي بهر وويستل نو و ئي ويل چه دَ
خپل ځان دَپارَ وتښته او وروستو خپل مه ګوره او په ټول ميدان کښ مه
١٨ ودريږه او غرِه ته وتښته چري نه وِي چه هلاک شي ١٨ او لوط هغوي ته
١٩ ووِ چه اي خداوندَ نه دِ وِي ١٩ ګوره ستا بنده ستا په نظر کښ نعمت
موندلي دي او خپلي مهربانکئ دِ زيات کړي دي هغه چه تا کړي دي ما سره
په ساتلو ځما دَ ځان او زه توان نه لرم چه غره ته وتښتم چري نه وِي چه
٢٠ څه اُفت راته ورسيږي نو مړ به شم ٢٠ ګوره دا ښهر نژدي دَ تښتيدو دَپارَ
هغه نه هغه وړوکي دي ملته به وتښتم هغه وړوکي نه دي څه؟ او ځان

به مِ ژوندي پاتي شي ٢١ نو ور ته ئي وويل چه گوره په دي خبري کښ هم مِ ٢١
ستا مخ کړي دي چه هغه ښهر چه تِر خبري دِ وکړي نسکور به ئي نه کړم-
٢٢ زر شه هلته وتښته ځکه چه زه هيڅ کولي نه شم تر هغه چه ته هلته ٢٢
ورشي له هغه سبب دَ هغه ښهر نوم صوغر وويلي شه ٢٣ چه لوط صوغر ٢٣
ته ورسيده نو په زمکه نمر وخوت ٢٤ او خداوند کوکړ او اور په سدوم او عموراه ٢٤
دَ خداوند له طرفَ له آسمان نه و ورول ٢٥ او هغه ښهرونَ او ټول ميدان او دَ ٢٥
ښهرونو ټول اوسيدونکي او زرغوني دَ زمکي ئي نسکور کړل ٢٦ او ښځي ئي ورستو ٢٦
له هغه نه وکتل او دَ مالگي ستن شوله ٢٧ او ابراهام په سحر کښ پاڅيد هغه ٢٧
ځاي ته چه هلته دَ خداوند دَ وړاندِ ولاړ وه ٢٨ او دَ سدوم او دَ عموراه او دَ ټولي ٢٨
زمکي دَ ميدان په طرف ئي توجه وکړه وئي کتل او گوره دَ زمکي لوگي دَ تنور دَ
لوگي په شان خوت ٢٩ او داسي وشوه چه الله دَ ميدان ښهرونَ خراب کړل چه ٢٩
الله ابراهام ياد کړ او لوط ئي واستاوه دَ نسکوريدو له مينځ چه ښهرونَ هغه
چه لوط په کښ اوسيده نسکور ئي کړل ٣٠ او لوط له صوغر نه وخوت او په غره ٣٠
کښ و وسيد او دواړه لونړه ئي ورسره وي ځکه چه دَ صوغر له استوګني نه
ووېريده او هغه او دواړه لونړه ئي په غار کښ ووسيدل ٣١ او مِشري ئي کِشري ٣١
ته ووِ چه څمونږ پلار زوړ شه او سړي په زمکه کښ نشته چه موافق له عادتَ
دَ ټولي زمکي مونږ لره راشي ٣٢ راشئ چه په خپل پلار شراب وڅښوو او له ٣٢
هغه سره څملو او له خپل پلار نه نسل به ژوندي کړو ٣٣ نو په شپه کښ ٣٣
به خپل پلار ئي شراب وڅښول او مشرئ ننوتله او له خپل پلار سره
څملاستله او دَ هغي په څملاستو او پاسيدو ئي پوه نه شه ٣٤ او په سحر ٣٤
کښ داسي وشوه چه مشري کشري ته ووِ چه گوره بيگاه له خپل پلار سره
څملاستم نن شپه هم شراب به پرِ وڅښوو او ته ننوزه ورسره څمله او له خپل ٣٥
پلار نه نسل به ژوندي کړو ٣٥ او هغه شپه ئي هم په خپل پلار شراب وڅښول
او کشري پاسيدله او ور سره څملاسته او دَ هغي په څملاستو او پاسدو پوه
نه شه ٣٦ او دواړه لونړه دَ لوط له خپلَ پلارَ حاملي شوي ٣٧ او مشرئ زوي ٣٦ ٣٧

راوړ او دَ هغه نوم ئې سواب وباله تر دي ورځي هغه دَ موابیانو پلار دي-
۳۸ ۳۸ او کشرئ هم زوي راوړ او دَ هغه نوم بن عمي و باله تر دي ورځي هغه
دَ بني عمونو پلار دي ❊

# شلم باب

۱ ۱ نو ابراهام له هغه ځایَ دَ جنوب زمکي ته کوچ وکړ او په مینځ دَ قادیش او دَ
۲ شور کښ ووسید په جرار کښ ئې تڼاو شه ۲ او ابراهام خپلي ښځي ساراه ته ووِ
۳ چه ځما خور ده او دَ جرار بادشاه ابي ملک واستاوه او ساراه ئې واخستله ۳ او الله
شپي له په خوب کښ ابي ملک له راغي او ورته ئې وویل چه گوره ته مړي په سبب
۴ دَ ښځي چه دِ اخستي ده چه هغه واده شوي ده ځښتن ته ۴ لیکن ابي ملک
ور نه نژدي شوي نه وه او وئې ویل اي خداوندَ صادق قام به ووژني څه ؟
۵ ۵ هغه ما ته نه وو ویلي څه چه دا ځما خور دَه او هغي پخپله هم وویل چه
هغه ځما ورور دي دَ خپل زړه په راستئِ او دَ خپلو لاسو په پاکئِ ما دا وکړه
۶ ۶ او الله په خوب کښ هغه ته ووِ زه هم پوهیږم چه دَ خپل زړه په راستئِ
دِ دا کړي دِي او ما هم ته منع کړي چه ته ما سره خطا ونه کړي دَ دي دپارَ
۷ مِ پري نه ښودِلي چه ئې مسه کړي ۷ نو اوس دَ سړي ښځه بیرته ولیږه چه
هغه نبي دي او هغه به ستا دپارَ دعا وکړي نو ژوندي به ئې او که ته ئې
۸ بیرته و نه لیږي پوه شه چه ضرور به مړ شي ته او هر څه چه ستا دِي ۸ نو
ابي ملک سحر وقتي پاسید خپل ټول غلامان ئې وبلل او دا ټولي خبري ئې دَ
۹ هغوي په غوږونو کښ وویلي او سړي ډیر وویریدل ۹ او ابي ملک ابراهام وباله او
ورته ئې ووِ چه له مونږَ دِ څه کړي دِي او ما له تا سره څه خطا کړي ده چه
لويَ خطا دِ په ما او ځما په بادشاهئِ راوړله کارونَ چه دَ کولو نه دِي له ما
۱۰ سره دِ کړي دِي ۱۰ بیا ابي ملک ابراهام ته وویل چه څه دِ لیدلي وُو چه دا کار
۱۱ دِ وکړ ۱۱ نو ابراهام ووِ چه ضرور ما وګڼڵه چه دَ الله ویره په دي ځاي کښ نشته
۱۲ او ما دَ خپلي ښځي په سبب به ووژني ۱۲ په رښتیا هم ځما خور ده ځما دَ پلار لور
۱۳ لیکن ځما دَ مور لور نه دَه او ځما ښځه شوه ۱۳ او داسي وشوه هرکله چه الله

زه دَ خپل پلار له کورَ آواره کړم چه هغي ته مِ ووِ دا ستا احسان دي چه ته
وکړي څما سره هر ځاي چه مونږ هلته لاړ شو څما په حق کښ ووایه چه دا
څما ورور دي ۱۴ نو ابي ملک گډي او غوا او غلامان او وینځي يُ واخستلي او ابراهام ۱۴
له يُ ورکړلي او دَ هغه ښځه ساراه يُ هغه له په بیرته ولیږله ۱۵ او ابي ملک ۱۵
ووِ چه گوره زمکه مِ ستا دَ وړاندِ ده اوسه په هغه کښ چه ستا په نظر کښ
ښه وِي ۱۶ او ساراه ته يُ ووِ چه گوره ستا ورور له مِ زر له سپینو زرو ورکړل ۱۶
گوره هغه ستا دَپارَ دَ سترگو پرده ده او دَ ټولو دَپارَ چه تا څخه دِي او نورُ ټولو
ته نو ته منصفه شوي ۱۷ او ابراهام الله ته دعا وکړه او الله ابي ملک له او هم ۱۷
ښځي له يُ او وینځو له يُ شفا ورکړه نو اولاد يُ راوړه ۱۸ ځکه چه خداوند ټول رِحمونَ ۱۸
دَ ابي ملک دَ کور په سبب دَ ساراه دَ ابراهام دَ ښځي بالکل بند کړي وُو ✢

## یو ویشتم باب

۱ او خداوند په ساراه نظر وکړ لکه چه يُ ویلي وُو او خداوند له ساراه سره ۱
وکړه لکه چه خبري کړي وي ۲ او ساراه حامله شوه او دَ ابراهام دَپارَ يُ زوي ۲
راوړه دَ هغه په زوړوالي کښ په هغه وقت کښ چه الله هغه ته خبري
کړي وي ۳ او ابراهام دَ خپل زوي نوم چه دَ هغه دَپارَ پیدا شوي وه ۳
چه ساراه دَ هغه دَپارَ راوړي وه اسحاق يُ ووایه ۴ او ابراهام خپل زوي ۴
اسحاق سُنت کړ او هغه دَ اته وُ ورځو وه لکه چه الله هغه ته حکم کړي
وه ۵ او ابراهام دَ سلو کالو وه چه دَ هغه زوي اسحاق دَ هغه دَپارَ پیدا ۵
شوي وه ۶ او ساراه ووِ چه الله څما دَپارَ خندا جوړه کړه ټول اوریدونکي ۶
به راسره خاندِي ۷ او وُيُ ویل چه ابراهام ته چا ویلي شو چه ساراه به ۷
ځامنو له تيُ ورکړِي ځکه چه ما دَ هغه په زوړوالي کښ زوي راوړ ۸ او ۸
هلک لوي شه او له تِي نه پرېکړي شه او ابراهام دَ اسحاق دَ تِي پرېکولو په ورځ
کښ لويه میلمستیا وکړه ۹ او ساراه دَ هاجار مصرِي زوي چه دَ ابراهام دَپارَ ۹
راوړي وه ولید چه خاندِي ۱۰ نو ابراهام ته يُ ووِ چه دا وینځه او دَ هغي زوي ۱۰
وشړه ځکه چه دَ دي وینځي زوي به څما له زوي اسحاق سره وارث نه شِي

۱۱ ۱۱ او دا خبره دَ ابراهام په نظر کښ ډېره بده ښوله په سبب دَ هغه دَ زوي
۱۲ ۱۲ او الله ابراهام ته ووِ دَ دي هلک دَپارَ او ستا دَ وینځي دَپارَ دِ ستا په نظر
کښ بد رانه ښي هرڅه چه ساراه تا ته وائِي دَ هغي خبره واوره ځکه چه
۱۳ ستا اولاد به له اسحاق نه بللي ښي ۱۳ او دَ وینځي زوي به هم قوم کړم ځکه چه
۱۴ هغه ستا نسل دي ۱۴ او ابراهام سحر وقتِي پورته شه ډوډي او دَ اوبو جئِي
ئِي واخستل او هاجار له ئِي ورکړل په اوږو ئِي کېښودل او هم ئِي زوي او وئِي
۱۵ لیږله نو لاړه دَ بیرْ شابع په بیابان کښ سرګردانه ګرزیدله ۱۵ او اوبه له جئِي
۱۶ نه خلاصي شولي او زوي له بوټو نه دَ یوه لاندِ پرېښود ۱۶ او لاړه او مخامخ ئِي
کښیناستله لرِي په قدر دَ اړتاؤ دَ لیندي او وئِي وِ چه دَ زوي مرګ به نه
۱۷ وینم او ورته مخامخ کښیناسته او آواز ئِي پورته کړ او وئِي ژړل ۱۷ او الله دَ
هلک آواز واورېده او دَ الله فرښتي هاجار ته له آسمان نه ناري کړي او ور
ته ئِي ووِ چه اي هاجارِ تا له څه وشو مه وېرېږه ځکه چه الله دَ هلک آواز
۱۸ چه هلته دي اورېدلي دي ۱۸ پاسه او هلک واخله او په خپل لاس ئِي کلک
۱۹ ونیسه ځکه چه هغه به لوي قام کړم ۱۹ او الله دَ هغي سترګي پرانتلي او دَ
۲۰ اوبو کوهئِي ئِي ولید او لاړه اوجئِي دَ اوبو ډک کړ او په زوي ئِي وڅښولي ۲۰ او الله
له هلک سره وه نو چه لوي شه او په بیابان کښ ووسید او لینده وېشتونکي
۲۱ شه ۲۱ او دَ پاران په بیابان کښ ووسید او مور ئِي دَ هغه دَپارَ دَ مصر
۲۲ له زمکي نه ښځه راوستله ۲۲ او په هغه زمانه کښ داسي وشول چه ابي‌ملک
او فیکل دَ هغه دَ لښکر سردار له ابراهام سره خبري وکړي و ئِي ویل چه
۲۳ الله تا سره دي په ټول څه کښ چه ته کوي ۲۳ نو اوس دلته ما ته په الله
سوګند وخوره چه له ما سره او دَ ځما اولاد سره او ځما له نوسي سره به ټګي نه
کوي بلکه موافق له هغه احسانَ چه له تا سره مِ کړي دي له ما سره او هم
۲۴ له هغي زمکي سره چه په هغي کښ مسافر شوي ئِي احسان وکړه ۲۴ او ابراهام
۲۵ ووِ چه زه سوګند خورم ۲۵ لیکن ابراهام ابي ملک ملامت کړ په سبب دَ
۲۶ کوهي دَ اوبو چه دَ ابي ملک غلامانو اخستي وه ۲۶ او ابي ملک ووِ نه پوهېږم

چه دا کار چا کړي دي او تا هم نه يم خبر کړي او ما هم تر نن ورځي پورې نه
۲۷ دي اوريدلي ۲۷ نو ابراهام ګډي او غوا واخستلي ابي ملک لره ئي ورکړلي او دواړو
۲۸ ۲۹ وعده وتړله ۲۸ او ابراهام اوه ګډي له کنډکونو نه جدا ودرولي ۲۹ او ابي ملک
۳۰ ابراهام ته ووې چه دا اوه ګډي چه دې جدا ودرولي دي څه دي ۳۰ هغه ووې ته اوه
ګډي زما له لاسه واخله چه ما له شاهدي وي چه دا کوهي ما کنودلي دي-
۳۱ ۳۱ ددي دپاره هغه ځاي بير شابع وبللي شه چه هغوي دواړو هلته سوګند
۳۲ وخوړ ۳۲ او وعده ئي په بير شابع کښ وکړله نو ابي ملک او فيکل دَ هغه دَ
۳۳ لښکر سردار پاسيدل او دَ فلسطيانو زمکي ته وګرزيدل ۳۳ او غز ئي ولګاوه
۳۴ په بير شابع کښ او هلته ئي وباله په نوم دَ يَهْوَهْ ابدي الله ۳۴ او ابراهام
دَ فلسطيانو په زمکه کښ ډيري ورځي مسافري وکړله +

## دوه ويشتم باب

۱ ۱ پس له دي خبرو داسي وشوه چه الله دَ ابراهام ازميښت وکړ او هغه
۲ ته ئي ووې اي ابراهامَ نو ورته ئي ووې ګوره دا يم ۲ او وئي ويل چه واخله
زوي خپل يواځي خپل اسحاق هغه چه ته ور سره مينه کوي او دَ موريا
زمکي ته څه او هلته ئي وخيژوه دَ سولو دَ قرباني دپارَ په يوه له غرونو نه چه
۳ تا ته به ووايم ۳ او ابراهام سحر وقتي پورته شه او خپل خر ئي کته کړ او
دوه ځوانان خپل او خپل زوي اسحاق ئي له ځان سره واخستل دَ سولو دَ
قرباني لرګي ئي وځيرول او پاسيده او هغه ځاي ته چه الله ورته ويلي وو
۴ لاړ ۴ او ابراهام په دريمه ورځ خپلي سترګي پورته کړي او هغه ځاي ئي له لري
۵ نه وليده ۵ او ابراهام خپلو ځوانانو ته ووې دلته له خره سره پاتي شئ او زه او
۶ ځوان به هلته لاړ شو او سجده به وکړو بيا به تاسو ته وجاروزو ۶ او ابراهام
دَ سوځولو دَ قرباني لرګي واخستل او په خپل زوي اسحاق ئي کښيښودل او
۷ اور او چړوکئ ئي په خپل لاس واخستل او دواړه سره لاړل ۷ او اسحاق له
خپل پلار ابراهامَ سره خبري وکړي و ئي ويل چه اي زما پلارَ نو هغه ووې
چه اي زما زويَ دا يم نو وئي ويل چه ګوره اور او لرګي شته ليکن وری دَ

٨ سولو دَ قربانئِ دَپارَ چرته دي ٨ نو ابراهام وَوِ چه اي ځما زويه الله به ځان
٩ له ورې دَ سولو دَ قربانئِ دَپارَ وګوري او دواړه سره لاړل ٩ او هغه ځاي
ته چه الله هغه ته ويلي وُو راغلل او هلته ابراهام مذبح جوړه کړله او
لرګي ئې په ترتيب کړل او خپل زوي اسحاق ئې وتاړه او هغه ئې په مذبح باندِ
١٠ دَ لرګو دَپاسَ کيښود ١٠ نو ابراهام خپل لاس اوږد کړ او چړوکئِ واخستله چه
١١ خپل زوي ذبح کړي ١١ نو دَ خداوند فرښتي له آسمان نه هغه ته ناري کړې و ئې ويل چه
١٢ اي ابراهامَ ابراهامَ او هغه ووِ دا يم ١٢ نو و ئې ويل چه خپل لاس زوي
ته مه اوږدَوَهٔ او ورسره هيڅ مه کوه ځکه چه اوس پوهيږم چه ته له الله
١٣ نه ويريږي چه زوي خپل يواځي خپل له ما نه دِمنع نه کړ ١٣ او ابراهام
خپلي سترګي پورته کړلي او و ئې کتل چه ګوره وروستو ئې ګډ چه دَ هغه ښکرونَ
په جاړه کښ نښتي دِي نو ابراهام لاړ او ګډ ئې ونيو او دَ خپل زوي په ځاي
١٤ ئې دَ سولودَقربانئِ دَپارَ وخيژاوه ١٤ او ابراهام دَ هغه ځاي نوم يَهْوَه يِرَاه
١٥ وواېه چه تر نني ورځي پوري ويلي شي دَ يَهْوَهْ په غره کښ ښکاره دي ١٥ او
١٦ دَ خداوند فرښتي دوباره له آسمان نه ابراهام ته ناره وکړه ١٦ او و ئې ويل زه
قسم خورم خداوند وائِي چه تا دا کار وکړ او زوي خپل يواځي خپل دِ له ما نه
١٧ منع نه کړ ١٧ تا به په برکت سره مبارک کړم او په زياتولو کښ ستا اولاد به
دَ آسمان دَ ستوريو په شان او په شان دَ شګو چه دَ درياب په غاړه دِي
١٨ زيات کړم او ستا اولاد به دَ خپلو دشمنانو دروازي په ميراث واخلي ١٨ او
دَ زمکي ټول قامونه به ستا له اولادَ مبارک کړي شي چه ځما قول دِ ومانه
١٩ ١٩ نو ابراهام خپلو ځوانانو ته وګرزيده نو پاسيدل او بير شابع ته سره لاړل
٢٠ او ابراهام په بير شابع کښ وُوسيد ٢٠ او پس له دي خبرو داسي وشه چه
ابراهام خبر کړي شه او ورته وويلي شول چه ګوره ملکاه هغي ستا دَ ورور
٢١ ناحور دَپارَ هم ځامن راوړي دِي ٢١ مشر ئې عوض او دَ هغه ورور بوز او قموئيل
٢٢ ٢٣ دَ ارام پلار ٢٢ او کسد او حزو او پلداش او يدلاف او بتوئيل ٢٣ او بتوئيل نه
٢٤ ربقاه پيدا شوه دا اته ملکاه دَ ابراهام دَ ورور ناحور دَپارَ راوړل ٢٤ او دَ هغه

سرّیهٔ چه دَ هغې نوم روماه وه هم طِبَح او جحم او تحش او معکاه راوړل +

## درویشتم باب

۱ او ژوندون دَ ساراه یو سل اوه ویشت کالَ وه دَ ساراه دَ ژوندون کلونه ۱
دومره وُو ۲ او ساراه په قریث دَ اربع کښې چه دَ کنعان په زمکه کښې حبرون ۲
دي ومړه او ابراهام راغي چه دَ ساراه وير وکړي او په هغې باندې وژاړي ۳ او ۳
ابراهام دَ خپل مړي له مخې پاسيد او دَ حيث له ځامنو سره خبرې وکړې و
ئې ويل ۴ زه تاسو څخه بيګانه او مسافر يم مقبره دَ قبضې دَپارَ تاسو ځان ۴
څخه راکړئ چه خپل مړي دَ ځان دَ وړاندې خښ کړم ۵ او دَ حيث ځامنو ۵
ابراهام له ځواب ورکړ ور ته ئې وويل ۶ چه اي ځما خاوندَ ځمونږ واوره ته ۶
په مونږ کښې دَ الله امير يې ځمونږ په غورو قبرونو کښې خپل مړي خښ کړه
يو له مونږ نه به قبر خپل له تا نه منع نه کړي څو چه خپل مړي خښ
کړې ۷ نو ابراهام پاسيده او دَ زمکې قام دَ حيث ځامنو ته ئې سجده وکړه ۷
۸ او ور سره ئې خبرې وکړې و ئې ويل که ستاسو رضا وي چه خپل مړي ۸
دَ ځان دَ وړاندې خښ کړم ځما واورئ ما له سفارش وکړئ له عفرون
دَ صوحر زوي ته ۹ چه غار دَ مکپيلاه چه دَ هغه دي او دَ هغه دَ پټي ۹
په ډډه دي ما له راکړي په لايق بيعه سره هغه ما له راکړي ستاسو په
مينځ کښې قبر دَ قبضې دَپارَ ۱۰ او عفرون دَ بني حيث په مينځ کښې ناست وه نو ۱۰
عفرون حِتّي په اوريدلو دَ بني حيث کښې دَ وړاندې دَ ټولو ننوتونکو دَ دروازې
دَ خپل ښهر ابراهام له ځواب ورکړ و ئې ويل ۱۱ چه اي ځما خاوندَ ځما ۱۱
واوره پټي تا له درکوم او غار چه په هغه کښې دي تا له درکوم دَ وړاندې
دَ ځامنو دَ خپل قام هغه تا له درکوم خپل مړي خښ کړه ۱۲ نو ابراهام ۱۲
سجده وکړه وړاندې دَ قام دَ زمکې ۱۳ او په اوريدو دَ قام دَ زمکې عفرون ۱۳
ته ئې خبرې وکړې و ئې ويل چه که ته ئې ما له راکوې نو ځما واوره دَ پټي
قيمت درکوم له ما نه واخله او خپل مړي به هلته خښ کړم ۱۴ او عفرون ابراهام ۱۴
له ځواب ورکړ هغه ته ئې وويل ۱۵ چه اي ځما خاوندَ ځما واوره چه زمکه ۱۵

لايقه دَ څلورو سوو روپو ده څما او ستا په مينځ کښ دا څه دِي نو خپل مړي
۱۶ ښښ کړه ۱۶ او ابراهام له عفرون نه واوريدل او ابراهام عفرون له سپين
زر چه ئي ويلي وه دَ بني حيث په اوريدو کښ وتلل څلور سوَ روپئ چه په
۱۷ سوداګرو کښ مروج دِي ۱۷ نو دَ عفرون پټي چه په مکپيلاه کښ چه مخامخ دي
ممريُ ته پټي او غار چه په هغه کښ دي او ټولي وُني چه په پټي کښ دِي
۱۸ په ټولو حدونو کښ ئي چاپير له هغه نه قائم شول ۱۸ ابراهام له ورانډِ دَ بني حيث
۱۹ دفتر دَپارَ دَ ټولو ننوتونکو دَ دروازي دَ هغه دَ ښهر ۱۹ او پس له هغه ابراهام
خپله ښځه ساراه په غار دَ پټي دَ مکپيلاه کښ ممريُ ته مخامخ چه هغه
۲۰ حبرون دي دَ کنعان په زمکه کښ ښخه کړه ۲۰ او پټي او غار چه په هغه کښ
دي دَ بني حيث له طرفَ ابراهام ته دَپارَ دَ قبضي دَ قبر قائم شول +

# څليرويشتم باب

۱ ۱ او ابراهام سپين ږيري او دَ ډيرو ورځو شه او خداوند ابراهام په هر خيز
۲ کښ برکتي کړ ۲ او ابراهام خپل سپين ږيري مريي ته چه په ټول څه دَ هغه
۳ دَ کور مختار وه وئي ويل خپل لاس څما دَ ورون لانډِ کيږده ۳ نو تا له په
يَهُوَه الله دَ آسمان او الله دَ زمکي سوګند درکوم چه څما دَ زوي دپارَ ښځه
له لوڼړو دَ کنعانيانو نه چه دَ هغوي په مينځ کښ اوسيدونکي يم وا نه خلي-
۴ ۴ بلکه څما زمکي او څما دَ پيدا کيدنو ځاي له لاړ شه څما دَ زوي اسحاق
۵ دَپارَ ښځه راوله ۵ او مريِي هغه ته ووِ که ښځه و نه غواړي چه ما پسي دي
زمکي ته راشي نو زه ستا زوي هغه زمکي ته چه له هغي نه بهر راغلي يي
۶ ورولم ۶ او ابراهام هغه ته ووِ چه خبردار اوسه چه څما زوي هلته ورنه ولى
۷ ۷ يَهُوَه الله دَ آسمان چه زه دَ خپل پلار له کور نه او دَ خپلي دَ پيدا کيدلو
له زمکي نه ئي رايستي يم او چه له ما سره ئي خبري کړي دِي او چه ما سره
ئي سوګند کړي دَي او ويلي دِي چه دا زمکه به ستا نسل له ورکوم هغه به
خپله فرښته ستا دَ وړانډِ وليږِي او څما دَ زوي دَپارَ ښځه له هلته نه به واخلي
۸ ۸ او که ښځه و نه غواړي چه تا پسي راشِي څما له دي سوګندَ ته خلاص يي

۹ صرف خما زوي هلته مه وروله ۹ نو مريي خپل لاس دَ خپل خاوند ابراهام دَ
۱۰ ورون لاندِ كښېښود او هغه ته ئي په دي خبري سوګند وخوړ ۱۰ نو مريي لس اوښان
دَ خپل خاوند له اوښانو نه واخستل او لاړ او ټول مال دَ خاوند دَ هغه په
۱۱ لاس كښ وه نو پاڅيد او ارم نهرايم له دَ ناحور ښهر له لاړ شه ۱۱ او اوښان
ئي كښېنول ښهر له ښهرَ دَ اوبو كوهي څخه دَ ماښام په وقت كښ په وقت دَ
۱۲ تلو دَ اوبو ويستونكيو ۱۲ او وئي ويل چه اي خداوند خما دَ خاوند ابراهام الله نن
۱۳ ورځ ما كامياب كړي او خما په خاوند ابراهام باندِ احسان وكړي ۱۳ ګوره زه
په چيني دَ اوبو ولاړ يم او لونړه دَ ښهر دَ خلقو دَ اوبو ويستلو دَ پارَه راځي
۱۴ ۱۴ نو داسي دِ وشي چه هغه جينۍ چه ورته ووايم چه خپل منګي راكوز كړه
چه وڅښم او هغه ووائي چه وڅښه او ستا اوښانو ته به هم وڅښوم هغه
دِ وي چه دَ خپل مريي اسحاق دَ پارَ دِ مقرره كړي ده او له دي نه به پوه شم
۱۵ چه خما له خاوند سره دِ احسان كړي دي ۱۵ او داسي وشوه چه دا خبري ئي
لا تمامي كړي نه وي ګوره ربقاه چه بتوئيل له زويَ دَ ملكاه ښځي دَ ناحور ورور
۱۶ دَ ابراهام پيدا كړي شوي وه ښهر راغله او منګي ئي په اوږه وه ۱۶ او جيني په
ليدو كښ ډير ښائسته ښيغله وه او نارينه ئي نه وه ليدلي چيني ته كوزه شوله
۱۷ او منګي ئي ډک كړ او وختله ۱۷ او مريي دَ هغي دَ ليدو دَ پارَ دَوُ كړ او وئي
۱۸ ويل چه لږي اوبه ستا له منګي نه په ما وڅښوه ـــ ۱۸ او وئي ويل چه
اي خما خاوندَ وڅښه او تلوارئي وكړه او خپل منګي په خپل لاس باندِ كوز
۱۹ كړ او به هغه ئي وڅښولي ۱۹ او چه دَ هغه له څښولو نه وزګاره شوله وئي
۲۰ ويل چه ستا دَ اوښانو دَ پارَ به هم وكاږم څو چه له څښلو بس كړي ۲۰ او تلوار
ئي وكړه او خپل منګي ئي په اخور كښ تش كړ او بيائي كوهي ته دو كړ وكښلو
۲۱ دَ پارَ او دَ هغه دَ ټولو اوښانو دَ پارَ ئي وكښلي ۲۱ او سړي چپ وه هغي ته به ئي
۲۲ كتل چه پوه شي چه خداوند دَ ده لار كاميابه كړي ده كه نه ۲۲ او داسي وشوه
چه اوښانو له څښلو نه بس كړل نو سړي دَ سرو زرو نتكۍ دَ نيم ټولي او دوه
۲۳ كړي دَ سرو زرو دَ لسو تولو دَ هغي دَ لاسونو دَ پارَ واخستلي ۲۳ او وئي ويل چه

دَ چا لور يې ما خبر کړه که نه ستا دَ پلار په کور کښې ځمونږ دَپارَ ځاي شته چه
۲۴ شپه تيره کړو څه؟ ۲۴ هغې ور ته ووِ چه زه لور يم دَ بتُوئيل زوي دَ ملکاه
۲۵ چه دَ ناحور دَپارَ يې راوړي يم ۲۵ او ور ته يې وويل چه بوس او وابښه مونږ
۲۶ ځخه ډير دي او هم دَ شپې تيرولو ځاي ۲۶ نو سړي سر ټيټ کړ او خداوند ته يې
۲۷ سجده وکړه ۲۷ او وَ يې ويل چه الله ځما دَ خاوند ابراهام مبارک دي چه خپل
احسان او خپله راستي يې ځما له خاوند نه منعَ نه کړه چه زه په لاره کښې وم يَهُوَهُ
۲۸ ما ته دَخپل خاوند دَ ورونړو کور وښوه ۲۸ نو جينۍ دوکړه او په موافق دَدي خبرو
۲۹ دَ خپلې مور په کور کښې دا خبري بياني کړې ۲۹ او دَ ربقاه ورور وه چه نوم يې لابان
۳۰ وه او لابان هغه سړي له بهر چينې له وزغليده ۳۰ او داسي وشوه چه نتکۍ او
کړي يې دَ خپلې خور په لاسو وليدلې او چه دَ خپلې خور ربقاه خبري يې واوريدې
چه ويل يې چه سړي ما ته داسي وويل هغه سړي له ورغي او گوره او ښانو
۳۱ ځخه په چينې ولاړ دي ۳۱ نو وَ يې ويل چه اي دَ خداوند مبارکَ را ننوزه بهر
۳۲ ولې ولاړ يې چه ما کور او ځاي ستا دَ اوښانو دَپارَ تيار کړي دي ۳۲ نو سړي
کور ته ننوت او اوښان يې پرانتل او اوښانو له يې بوس او وابښه ورکړل او
۳۳ او به دَده دَ پښو او دَ سړو دَ پښو چه ور سره وُو وينځلو دَپارَ ورکړي ۳۳ او
دَ هغه دَ وړاندِ کښېښودلې شول چه وخوري نو وَ يې ويل چه و به نه خورم
۳۴ تر هغه چه خپله خبره ووايم او وَ يې ويل چه ووايه ۳۴ نو وَ يې ويل چه
۳۵ زه دَ ابراهام مريي يم ۳۵ او خداوند ځما خاوند ډير مبارک کړي دي او لوي
شوي دي او هغه له يې گډوڼ او غوايان او سپين زر او سره زر او مريونه
۳۶ او وينځې او اوښان او خرونه ورکړي دي ۳۶ او ساراه ځما دَ خاوند ښځې ځما دَ
خاوند دَپارَ پس له هغه چه زړه شوي وه زوي راوړ او
۳۷ هغه له يې ورکړه ټول څه چه دَده وُو ۳۷ او ځما خاوند ما لره سوگند راکړ
وَ يې ويل چه ځما دَ ځوي دَپارَ ښځه دَ هغو کنعانيانو له لوڼرو نه چه دَ هغوي
۳۸ په زمکي کښې او سيدونکي يم مه اخله ۳۸ ته لاړ شه ځما دَ پلار کور له او ځما
۳۹ قبيلې له او ځما دَ زوي دَپارَ ښځه واخله ۳۹ نو خپل خاوند ته مې وويل ښائي

۴۰ چه، ښځه ما پسي راند شي ۴۰ هغه ما ته وويل خداوند چه د هغه د وړاندِ تلي يم
خپله فرښته به له تا سره وليږي تا به په خپلي لاري کښ کامياب کړي او ته به
۴۱ ځما د زوي دپاره ښځه ځما له قبيلي او ځما د پلار له کور نه راولي ۴۱ او ته به ځما
له سوګند نه خلاص شي چه ځما قبيلي له ورشي که تا له ښځه در نه کا ځما له
۴۲ سوګند به خلاص يي ۴۲ او نن ورځ چيني له راغلم او وم ويل چه اي خداوند
ځما د خداوند ابراهام الله که اوس په هغي لاري چه په هغي کښ تلونکي يم
۴۳ ما کامياب کړي ۴۳ ګوره زه د اوبو په چيني ولاړ يم نو دا رنګ به وشي
چه پيغله چه د اوبو وکښلو دپار بهر وزي او هغي ته ووايم چه لږي اوبه
۴۴ ستا له منګي نه په ما وڅښوه ۴۴ او هغه به ما ته ووائي ته پخپله وڅښه
او هم ستا د اوښانو دپار به هم وباسم هغه ښځه دِ وي چه خداوند ځما د خاوند
۴۵ د زوي دپار مقرّره کړي ده ۴۵ او چه زه له خبري نه په خپل زړه کښ
وزګار شوي نه وم نو ګوره ربقاه راوتلي وه او خپل منګي ئي په اوږه وه او
چيني ته کوزه شوه او وئ کښلي او ما هغي ته ووِ چه په ما وڅښوه-
۴۶ او تلوار ئي وکړه او خپل منګي ئي له اوږي نه راکوز کړ او وئي ويل چه
څښه او ستا په اوښانو به هم وڅښوم نو ما وڅښلي او په اوښانو ئي
۴۷ هم وڅښولي ۴۷ او له هغي نه مِ تپوس وکړ او وم ويل چه ته دچا لور
يي هغي ووِ لور د بتوئيل د ناحور زوي چه ملکاه وله راوړي وه نو نتکۍ مِ
۴۸ د هغي په پوزه کړله او کړي مِ د هغي په لاسو کړلي ۴۸ او ټيټ شوم او خداوند
ته مِ سجده وکړه او د خداوند مبارکي مِ وکړه ځما د خاوند ابراهام الله چه
ما ته ئي هدايت وکړ د راستي په لار کښ چه د خپل خاوند د ورور لور
۴۹ د هغه د زوي دپار وکړم ۴۹ او اوس که تاسو مهرباني او راستي ځما د خاوند
سره کوئِ ما خبر کړئِ او که نه ما خبر کړي چه ښي يا کيڼ طرف ته وګرزم-
۵۰ نو لابان او بتوئيل په ځواب کښ ووِ چه دا کار له خداوند نه شوي دي مونږ
۵۱ تا ته بد يا ښه ويلي نه شو ۵۱ ګوره ربقاه دِ وړاندِ ده واخله او ځه چه ستا
۵۲ د خاوند د زوي ښځه شي موافق د خبري د خداوند ۵۲ او داسي وشوه چه مريي

۵۲ دَ ابراهام دَ هغوي خبره واوریدله خداوند له ئي په زمکه سجده وکړه ۵۳ نو مرئي لېښې
دَ سپینو زرو او دَ سرو زرو او جامې تحفي بهر وېستلي او ربقاه له ئي ورکړلي
۵۴ او ورور له ئي او مور له ئي تحفي ورکړلي ۵۴ او هغه او سړو چه ورسره وُو وخوړل او وڅښل
او شپه ئي کړله او سحر پاڅیدل او وئي ویل چه ما خپل خاوند ته و
۵۵ لیږئ ۵۵ او ورور او مور ئي وویل چه جینئ دِ څه ورځي یا لس موږ
۵۶ سره پاتي شي بیا دِ روانه شي ۵۶ نو ورته ئي وویل چه ما مه ایسارَوئ
۵۷ خداوند خما لار کامیاب کړي دَه ما ولیږئ چه خپل خاوند له ځم ۵۷ هغوي
۵۸ وویل چه جینئ به وبولو او دَ هغي دَ خولي نه به تپوس وکړو ۵۸ نو ربقاه
ئي وبلله هغي ته ئي وویل چه ته به له دې سړي سره ځي هغي ووِ چه
۵۹ ځم ۵۹ نو دَ هغوي خور ربقاه او دَ هغي دائي او دَ ابراهام مریي او دَ هغه
۶۰ سړي ئي ولیږل ۶۰ او ربقاه ئي مبارک کړله او هغي ته ئي وویل چه ته ځمونږ
خورئي ته به دَ ډیرو زرګونو شي او ستا اولاد دِ دَ خپلو دښمنانو دَ دروازي
۶۱ وارثان شي ۶۱ او ربقاه او دَ هغي سهیلئ پاڅیدلي او په اوښانو سوري شولي
۶۲ سړي پسي لاړي او مریي ربقاه واخستله او لاړ ۶۲ او اسحاق بیرلحي روئي ته راغي
۶۳ ځکه چه دَ جنوب په زمکه کښ اوسېدونکي وه ۶۳ او اسحاق دَ ماښام په وقت
کښ دَ فکر کولو دَپارَ پټي ته ووت او خپلي سترګي ئي پورته کړي و ئي کتل ګوره
۶۴ اوښان راځي ۶۴ او ربقاه خپلي سترګي پورته کړلي او اسحاق ئي ولید او له اوښ
۶۵ نه کوزه شوه ۶۵ او مریي ته ئي وویل چه دا سړي څوک دي چه په پټي کښ
ځمونږ دَ ملاقات دَپارَ راځي نو مریي وویل چه خما خاوند دي نو پرده ئي را
۶۶ واخستله او پټه شوله ۶۶ نو مریي ټول کارونَ چه ئي کړي وُو اسحاق ته ئي
۶۷ بیان کړل ۶۷ او اسحاق هغه دَ خپلي مور ساراه خیمي ته ننه یستله او ربقاه ئي
واخستله او دَ هغه ښځه شوه او په هغي ئي مینه کوله او اسحاق پس له خپلي
مور ئي تسلّي بیاموندله +

## پنځویشتم باب

۱ او بیا ابراهام ښځه واخستله چه نوم ئي قطوراه وه ۲ او دَ هغه دَپارَ ئي

زمران او يقشان او مدان او مديان او يشباق او شوحا راوړل ۳ او له يقشان ۳
شبا او ددان پيدا شول او دَ ددان ځامن اشوريم او لطوشيم او لئوميم وُو ۴ او دَ ۴
مديان ځامن عيفاه او عيفر او حنوک او ابيداع او الداعاه وُو هغوي ټول دَ
قطوراه ځامن وُو ۵ نو ابراهام ټول هغه چه دَده وُو اسحاق لره ورکړل - ۵
۶ او ابراهام دَ سريتو ځامنو ته چه ابراهام څخه وُو بخښني ئي ورکړلي او ۶
هغوي له خپل زوي اسحاق نه چه لا ژوندي وه نورخاته دَ نورخاته زمکي ته
وليږل ۷ او ورځي دَ کالونو دَ ژوندون دَ ابراهام چه ژوندون ئي کړي وه دا ۷
دِي يو سل او پنځه اويا کاله ۸ او ابراهام ځان وسپاره او مړ شه په ښه ۸
زوړوالي کښې زوړ او دَ ډيرو ورځو او له خپل قام سره پيوست شه ۹ او دَ ۹
هغه ځامنو اسحاق او اسمعيل هغه په غار دَ مکپيلاه په پټي دَ عفرون
زوي دَ صوحرِ حِتّي کښې چه په برابر دَ ممرئ دي خښ کړ ۱۰ پټي چه ابراهام ۱۰
دَ حيث له ځامنو نه پيرودلي وه نو هلته ابراهام او ښځه ئي ساراه خښ کړي
شول ۱۱ او داسي وشوه پس له مرګ دَ ابراهام چه الله دَ هغه زوي اسحاق ۱۱
مبارک کړ او اسحاق بيرلحي روئي څخه وسيد ۱۲ او پيړيئ دَ اسماعيل زوي ۱۲
دَ ابراهام چه هاجارِ مصريه دَ ساراه وينځي ابراهام له راوړي وه دا دِي ۱۳ او ۱۳
دا دِي نومونه دَ ځامنو دَ اسماعيل موافق دَ نومونو دَ هغو په شان دَ پيدا
کيدلو دَ هغوي مشر دَ اسماعيل نبايوث او قيدار او ادبئيل او مبسام ۱۴ او ۱۴
مشماع او دوماه او مسّاه ۱۵ او حدد او تيما او يطور او نافيش او قيدماه ۱۵
۱۶ دا دِي ځامن دَ اسماعيل او دا دِي نومونَ دَ هغوي موافق دَ کلو او دَ قلعو ۱۶
دَ هغوي دولس سرداران موافق دَ خپلو امتونو ۱۷ او کالونَ دَ ژوندون دَ ۱۷
اسماعيل دا دِي يو سل او اوه ديرش کالَ خپل روح ئي وسپاره او مړ شه
او له خپل قام سره پيوست شه ۱۸ او هغوي له حويلاه نه تر سورَ پوري ۱۸
چه ستا دَ تلو اشور ته دَ مصر په برابر دي و اوسيدل او هغه دَ خپلو ټولو
ورونړو دَ وړاندِ لاندِ شه ۱۹ او پيړيئ دَ اسحاق دَ ابراهام دَ زوي دا دِي له ۱۹
ابراهام اسحاق پيدا شه ۲۰ او اسحاق دَ څلويښتو کالو وه چه ربقاه دَ بتوئيل ۲۰

۲۱ ارمي لور او دَ لابان ارمي خور ئې له پدن ارام نه ښځه وکړه ۲۱ او اسحاق
خداوند ته دَ خپلي ښځي دَپارَ چه شنړه وه دعا وکړه او خداوند دَ هغه دعا قبولَ
۲۲ کړه نو دَ هغه ښځه ربقاه حامله شوه ۲۲ او ځامن ئې په کښ خوزیدل نو و
۲۳ ئې ویل که دا رنګ وِي نو ولي داسي یم نو لاړه چه یَهُوَهْ نه تپوس وکړي ۲۳ او
خداوند هغي ته ووِ

ستا په ګیډه کښ به وشي دوه قامونه
او ستا له کلمو نه به جدا شي دوه امتونه
او زوراور به قام په قام شي
لوي دَ وړوکي به غلام شي .

۲۴ ۲۴ او چه دَ پیداکیدو ورځي ئې پوره شوي نو ګوره دَ هغي په ګیډه کښ
۲۵ جوړه وُو ۲۵ او وړومبي سور رنګي پیدا شه او هغه ټول دَ پشمیني جامي
۲۶ په شان وه او دَ هغه نوم ئې عیسو کښیښود ۲۶ او پس له هغه دَ هغه
ورور پیدا شه او په لاس ئې دَ عیسو پونده نیولي وه نو نوم ئې یعقوب
۲۷ کښیښود شه او اسحاق دَ شپیتو کالو وه چه دوي تر پیدا شول ۲۷ او هلکان
لوي شول او عیسو هوښیار ښکاري او دَ ېټيي سړي وه او یعقوب کامل سړي
۲۸ په تنبو کښ اوسیدونکي وه ۲۸ او اسحاق عیسو سره محبت کاوه ځکه چه په
۲۹ ښکار مین وه لیکن ربقاه یعقوب سره محبت کاوه ۲۹ او یعقوب ېخلي
۳۰ پخاوه او عیسو له صحرا نه راغي او ستړي شوي وه ۳۰ او عیسو یعقوب ته
ووِ چه په ما له دي سره نه و خوړه وه ځکه چه ستړي شوي یم ځکه
۳۱ ۳۲ ئې نوم ادوم وبللي شه ۳۱ او یعقوب ووِ په ما باندِ نن ورځ خپل مشرواني خرځ کړه ۳۲ او
۳۳ عیسو ووِ چه ګوره زه مرم ما له دا مشرواني څه دي ۳۳ او یعقوب ووِ چه نن ورځ ما
ته بسوګند وخوره او هغه ور ته سوګند وخوړ او خپل مشرواني ئې
۳۴ په یعقوب خرځ کړ ۳۴ او یعقوب عیسو له ډوډئ او دَ نسکو پیتي ورکړل
او هغه وخوړل او وڅښل او پاڅید او لاړ او عیسو مشرواني سپک
وګاڼړه ❊

# شپږویشتم باب

۱ ۱ او په زمکه کښې قحط شه بې له هغه ورومبي قحط نه چه دَ ابراهام په
۲ ورځو کښې وه او اسحاق ابي‌ملک دَ فلسطیانو بادشاه له جرار ته لاړه ۲ او خداوند
هغه ته ښکاره شه و ئې ویل چه مِصر ته مه کوزیږه په هغه زمکه کښې
۳ چه تا ته ئې وایم اوسیږه ۳ په دي زمکه کښې تکاو شه نو له تا سره به یم او
تا به مبارک کړم ځکه چه تا له او ستا اولاد له به دا ټولي زمکي ورکړم هغه
۴ سوګند چه مِ ستا پلار ابراهام سره کړي وه ثابت به ئې کړم ۴ او ستا اولاد
به دَ آسمانونو دَ ستوریو په شان ډیر کړم دا ټولي زمکي ستا اولاد له به ورکړم
۵ او ستا له اولاد نه به دَ زمکي ټول قامونه مبارک کړي شي ۵ دَپارَ دَدي چه
ابراهام زما ویل واوریدل او و ئې ساتل زما ساتنه زما حکمونه زما حقونه او
۶ زما شریعتونه ۶ او اسحاق په جرار کښې اوسیده ۷ او دَ هغه ځاي سړو دَ
هغه دَ ښځي په حق کښې پښتنه وکړه هغه ووِ زما خور ده ځکه چه په دَي
ویلو چه زما ښځه ده وویریده چري نه وِي چه دَدي ځاي سړي ما دَ ربقاه
۸ په سبب ووژني ځکه چه په لیدو کښې ښایسته وه ۸ او داسي وشوه چه
هلته ئې ورځي ډیري وشوي ابي‌مِلک دَ فلسطیانو بادشاه له کړکۍ نه وکتل
۹ او و ئې لیده کوره اسحاق له خپلي ښځي ربقاه سره خندا کوله ۹ او ابي‌مِلک
اسحاق وباله و ئې ویل چه کوره ضرور ستا ښځه دَه نو ولي دِ ووِیل زما خور
ده نو اسحاق هغه ته ووِ چه ما وویل هسي نه وِي چه دَ هغي په سبب مړ
۱۰ شم ۱۰ او ابي‌ملک ووِ دا څه دِي چه مونږ سره دِ کړي دِي احتمال وه چه یو
له خلقو نه ستا ښځي ځخه ملاست وي او په مونږ به دِ ګناه راوړي وه-
۱۱ ۱۱ نو ابي‌مِلک ټولو خلقو ته حکم وکړ و ئې ویل که څوک په دي سړي یا دَ
۱۲ هغه په ښځه لاس ولګوِي ضرور به ووژلي شِي ۱۲ او اسحاق په هغه زمکه
کښې کر وکړ او په هغه کال کښې ئې سل‌چندَ ومومندل او خداوند هغه له
۱۳ برکت ورکړ ۱۳ نو سړي لوي شه او په لوئي کښې زیاتیده تر هسي حدَ لوي

۱۴ شه چه ډير لوي شه ۱۴ او دَ هغه دَ کنډوکونو مال او دَ کوهارو مال او
۱۵ غلامان ډير شول چه فلسطيانو ورسره کينه وکړه ۱۵ او ټول کوهي چه دَ
هغه دَ پلار غلامانو دَ هغه دَ پلار ابراهام په ورځو کښ کنودلي وُو فلسطيانو
۱۶ بند کړل او له خاورو نه ئې ډک کړل ۱۶ او ابي ملِک اسحاق ته ووِ چه له مونږ نه
۱۷ لاړ شه ځکه چه ته له مونږ نه ډير زوراور شوي يي ۱۷ نو اسحاق له هلته نه
۱۸ لاړ او دَ جرار په دَرّي کښ ډيره شه او هلته اوسيده ۱۸ او اسحاق دوباره
وکنودل دَ اوبو کوهي چه دَ هغه دَ پلار ابراهام په ورځو کښ ئې کنودلي وُو
او فلسطيانو هغه پس له مرګ دَ ابراهام بند کړي وُو او دَ هغوي نومونه ئې
۱۹ ووِيل په شان دَ هغو نومونو چه دَ هغه پلار په هغوي ايښي وُو ۱۹ او دَ اسحاق
۲۰ غلامانو په دَرّي کښ وکنوده نو دَ جارِي اوبو کوهَي ئې هلته بيامونده ۲۰ او دَ جرار
شپنو دَ اسحاق له شپنو سره جګړه وکړله وئې ويل چه اوبه ځمونږ دِي او دَ هغې
۲۱ کوهي نوم ئې عيسق کيښود ځکه چه ورسرهِ ئې جګړه کړي وه ۲۱ او بل کوهي ئې و
۲۲ کنوده او په هغه ئې جګړه وکړه او دَ هغه نوم ئې سطنه کيښود ۲۲ پس له هغه
خايَ ئې کوچ وکړ بل کوهي ئې وکنوده او په هغه ئې جګړه ونه کړه نو دَ هغه نوم ئې
رحوبوت کيښود وئې ويل چه اوس خداوند مونږ له ارتوالي راکړي دي او په زمکه
۲۳ ۲۴ کښ به بارَور شو ۲۳ او له هغه خايَ بيرشبع ته وخوت ۲۴ او په هغه شپه
کښ يَهوَه ور ته ښکاره شه وئې ويل چه زهِ ستا دَ پلار ابراهام الله يم مه
ويريږه ځکه چه زه تا سره يم او تا به مبارک کړم او ستا نسل به ډير کړم په
۲۵ سبب ځما دَ بنده ابراهام ۲۵ او هلته ئې مذبح بنا کړه او دَ خداوند په نوم ئې وبلله
۲۶ او هلته ئې خپل تنبو ودراوه او دَ اسحاق مريونو هلته کوهي وکنود ۲۶ او ابي ملِک
او اُحزَّث دَ هغه له دوستانو نه او دَ هغه دَ فوځ سردار فيکول له جرار نه وله
۲۷ لاړل ۲۷ او اسحاق هغوي ته ووِ چه ولي ما ځخه راغلي يئ او تاسو ما سره دښمنِي
۲۸ لرئ او زه موله خپل ځان نه لري کړي وم ۲۸ او هغو وويل چه مونږ ښه وليده
چه خداوند له تا سره دَي او مونږ ووِ چه سوګند دِ وِي ځمونږ په مينځ کښ او له
۲۹ تا سره به وعده وکړو ۲۹ چه ته مونږ سره بدِي ونه کړي لکه چه مونږ تا له کوتي

دروري نه دِي لکه چه مونږ تا سره فقط ښه کړي دِي او په سلامتئ سره مونږ
۳۰ لیږلي ئ او ته اوس دَ خداوند متبرک ئ ۳۰ نو دَ هغوي دِپارَ ئ میلمستیا وکړه او
۳۱ ؤي خوړل او ؤي څښل ۳۱ او سحر وختي پورته شول یو له بل سره ئ سوګند
۳۲ وخوړ او اسحاق هغوي رخصت کړل او له هغه نه په سلامتي لاړل ۳۲ او په
هغه ورځ کښ داسي وشوه چه دَ اسحاق مریونه راغلل او خبر ئ کړ دَ هغه
کوهي په باب کښ چه ئ کنودي وه او هغه ته ئ وویل چه اوبه مونږ
۳۳ بیامونديلي ۳۳ نو هغه ئ شبعاه وُباله په هغه سبب دَ ښهر نوم تر نن ورځ
۳۴ پوري بیر شبعاه دي ۳۴ او عیسو دَ څلوېښتو کالو وه چه یهودیث لور دَ بیرئ
۳۵ حتيّ او باسمث لور دَ ایلون حتيّ ئ ښځي وکړي ۳۵ او دواړه تریخوالي دَ روح دَ
اسحاق او دَ ربقاه وي ✢

# او ویشتم باب

۱ ۱ او داسي وشوه چه اسحاق زوړ شه چه دَ هغه سترګي له لیدو نه تتیي
شولي او خپل مشر زوي عیسو ئ وباله هغه ته ئ وویل چه اي څما زویَ او
۲ هغه ورته وویل چه ګوره دا یم ۲ او ؤي ویل چه ګوره که نه زوړ شوم او
۳ دَ خپل مرګ په ورځ پوه نه یم ۳ نو اوس خپلي وسلي خپل ترکش او خپله
۴ لیندۍ واخله او میدان ته ووزه څما دِپارَ ښکار وکړه ۴ او څما دِپارَ لکه
چه ئ خوښوم خوراک تیار کړه ما له ئ راوړه چه ؤي خورم دَ دي دِپارَ چه څما
۵ روح ښخوِا له مرګَ برکت درکړي ۵ او ربقاه هغه چه اسحاق خپل زوي عیسو
ته ووِ واوریدل نو عیسو میدان ته لاړ شه چه ښکار وکړي او راؤي وړي
۶ ۶ او ربقاه خپل زوي یعقوب ته خبري وکړي و ئ ویل ګوره ستا له پلارَ
۷ مِ واوریدل چه ستا ورور عیسو ته ئ وویل ۷ چه څما دِپارَ ښکار راوړه
څما دِپارَ طعام تیار کړه چه وخورم او ښخوا له خپلَ مرګَ دَ خداوندَ وړاندِ تا
۸ مبارک کړم ۸ نو اوس اي څما زویَ څما ویل واوره په هغه شان چه تا ته
۹ حکم کوم ۹ کندک له لاړ شه څما دِپارَ له هلته نه ښه دوه ورغومي
له بیزو نه واخله چه له هغوي نه ستا دَ پلار دِپارَ چه ئ خوښوِي طعام

۱۰ تيار کړم ۱۰ او ته ئې خپل پلار له راوړه چه ئې وخوړي دَ دي دَپارَ چه پخوا
۱۱ له خپلَ مرګَ برکتِ درکړِي ۱۱ او يعقوب خپلي مور ربقاه ته ووِ چه ګوره ځما
۱۲ ورور عيسو ببر سړي دي او زه خوَبَه پوستي سړي يم ۱۲ شسي نه چه ځما پلار
ما مس کړِي او زه دَ هغه په نظر کښ دَ غلوونکِي په شان شم او په خپل
۱۳ ځان باندِ لعنت راوړم ۱۳ نو مور ئې ورته ووِ چه اي ځما زويَ ستا لعنت دِ
۱۴ په ما وِي تش ځما ويل واوره اولاړ شه ماله راوله ۱۴ نو لاړ شه اوراٸې
وست او خپلي مور له ئې راوړل او مور ئې خوراک لکه چه پلار ئې خوښاوه
۱۵ تيار کړ ۱۵ او ربقاه ښي جامي دَ خپل مشر زوي عيسو چه په کورکښ هغي
۱۶ ځنه وي واخستي او خپل کشر زوي يعقوب ته ئې واغوستولي ۱۶ او دَ بيزي
۱۷ دَ ورغومو څرمني ئې دَ هغه په لاسونو او په څټ ئې واغوستولي ۱۷ او هغه
خوراک او ډوډيِ ئې چه تياري کړي وي دَ خپل زوي يعقوب په لاس ئې
۱۸ ورکړلي ۱۸ او هغه خپل پلار ته ننوت و ئې ويل چه اي ځما پلارَ او هغه
۱۹ ووِ چه ګوره دا يم اي ځما زويَ ته څوک يي ۱۹ او يعقوب خپل پلار ته ووِ چه
زه ستا مشر زوي عيسو يم په هغه شان چه ما ته دِ ويلي وُو ما وکړل
پاڅه کښينه او ځما له ښکار نه وخوره دَ دي دَپارَ چه ستا روح مِ مبارک
۲۰ کړي ۲۰ او اسحاق خپل زوي ته ووِ چه دا څنګه دي چه زر دِ بياموند اي ځما
۲۱ زويَ او هغه ووِ چه خداوند ستا الله ځما دَ وړاندِ راوست ۲۱ او اسحاق يعقوب
ته ووِ راوړاندِ شه که نه چه تا مس کړم اي ځما زويَ چه ته هغه ځما زوي
۲۲ عيسو يي که نه ۲۲ نو يعقوب خپل پلار اسحاق ته نږدي شه نو مس ئې کړ
و ئې ويل چه آواز آواز خو دَ يعقوب دي ليکن لاسونه ئې لاسونه دَ عيسو دِي
۲۳ ۲۳ او و ئې نه پيژند ځکه چه دَ هغه لاسونه دَ خپل ورور عيسو دَ لاسونو
۲۴ په شان ببر وُو نو مبارک ئې کړ ۲۴ او و ئې ويل چه ته هغه ځما زوي عيسو
۲۵ يي څه او هغه ووِ چه زه هغه يم ۲۵ نو و ئې ويل چه رانږدي کړه چه دَ خپل
زوي له ښکار نه وخورم دَ دي دَپارَ چه روح مِ برکت درکړِي او ور له راٸې
۲۶ وړ نو وئې خوړ او هغه له ئې شراب راوړل نو و ئې څښل ۲۶ او دَ هغه پلار

اسحاق هغه ته ورِ چه را نژدي شه که نه او ما ښکل کړه اي ځما زويَ ٢٧ نو ٢٧
ورنژدي شه او ښکلي ئې کړ او دَ هغه دَ زړوکو بوي ئې بوي کړ او مبارک ئې
کړ او و ئې ويل
ګوره چه ځما دَ زوي بوي په شان دَ بوي
دَ پټي دي چه خداوند هغه مبارک کړ
٢٨ او الله دِ تا ته دَ آسمان له پرخې نه او دَ زمکي له ځربوالي نه درکړِي او ٢٨
ډيروالي دَ غلي او دَ شيري دَ انګورو
٢٩ او قامونَ دِ ستا مريتوب وکړِي ٢٩
او امّتونَ دِ تا ته سجده وکړِي
او په خپلو ورونړو غالب شي
او ستا دَ مور ځامن دِ تا ته سجده وکړِي
ستا لعنت کوونکي دِ ملعون شي
او ستا مبارک کوونکي دِ مبارک شي
٣٠ او داسي وشوه چه اسحاق دَ يعقوب له برکت نه وزګار شه او داسي ٣٠
وشوه چه يعقوب دَ خپل پلار اسحاق له وړاندِ نه په وتلو شه چه دَ
هغه ورور عيسو له خپلَ ښکارَ راغي ٣١ او هغه هم خوراک تيار کړ او ٣١
خپل پلار له ئې راوړ او خپل پلار ته ئې ورِ چه پلار مِ دِ پاځي او دَ
خپل زوي له ښکار نه دِ وخوړي دَ دي دَپارَ چه ستا روح ما مبارک
کړِي ٣٢ او دَ هغه پلار اسحاق هغه ته ورِ چه ته څوک يي نو و ئې ويل ٣٢
چه زه ستا مشر زوي عيسو يم ٣٣ نو اسحاق په بيحدَ لويو لړزيدلو ٣٣
ولړزيد او و ئې ويل چه هغه چرته دي چه ئې ښکار ښکار کړي دي او ما
له ئې راوړي دي او ستا له راتلو نه پخوا له ټولو نه مِ وخوړ او برکت مِ ورکړ
هو متبرک به شي ٣٤ او چه عيسو دَ خپل پلار خبري واوريدي په بيحد ٣٤
لوي او تريخ فرياد سره ئې چغي وکړي پلار ته ئې وويل ما له هم برکت راکړه
اي ځما پلارَ ٣٥ او هغه ورِ چه ستا ورور په چل راغي او ستا برکت ئې ٣٥

٣٦ واخست ٣٦ او وئي ویل چه ایا نوم ئي یعقوب بللي شوي نه دي څه او هغه
زه ورسني کړي یم دا دوه ځله ځما مشروالي ئې واخست او ګوره اوس ئې ځما برکت
٣٧ واخست او وئې ویل ایا ځما دپارَ دِ برکت باقي نه دي پرېښي څه ٣٧ او اسحاق
ځواب ورکړ او عیسو ته ئې وویل چه ګوره هغه مِ ستا خاوند کړي دي او
دَ هغه ټول ورونړه مِ دَ هغه غلامان کړل او په غنمو او په شیري سره مِ
٣٨ توان ورکړ نو ستا دَپارَ اي ځما زويَ څه وکړم ٣٨ او عیسو خپل پلار ته ووِ
چه فقط ستا یو برکت دي څه اي ځما پلارَ مبارک مِ کړه ما هم اي ځما
٣٩ پلارَ او عیسو خپل آواز پورته کړ او وئي ژړل ٣٩ او دَ هغه پلار اسحاق
ځواب ورکړ هغه ته ئې وویل

ګوره ستا مسکن به دَ زمکي له څربښت نه-وِي
او له پورته دَ آسمان له پرخي نه به وِي
٤٠ ٤٠ او په خپله توره به ګذران کوي
او دَ خپل ورور غلام به شي
او هر کله چه ته قوِي شي
دَ هغه جغ به له خپلي غاړي نه مات کړي

٤١ ٤١ نو عیسو په یعقوب باندِ دَ هغه برکت دَپارَ چه دَ هغه پلار هغه له
ورکړي وه کینه وکړه او عیسو په خپل زړه کښي ووِ چه ځما دَ پلار دَ وِیر
٤٢ ورځي نزدي دِي او خپل ورور یعقوب به ووژنم ٤٢ او ربقاه ته دَ خپل
مشر زوي عیسو خبري وویلي شولي او وئي لیږه او خپل کشر زوي یعقوب
ئي وباله هغه ته ئي ووِ چه ګوره ستا ورور عیسو ستا په سبب تسله کوِي
٤٣ چه تا ووژنِي ٤٣ نو اوس اي ځما زويَ ځما خبره واوره او پاڅه ځما ورور لابان
٤٤ له حاران ته وتښته ٤٤ او ورسره څو ورځي اوسه تر هغه چه ستا دَ ورور
قهر له تا ته وګرځي او هغه چه دِ ور سره کړي دِي هیر کړِي بیا زه
به څوک درولیږم تا به له هلته نه راوبلمَ ولي به له تاسو دواړو نه په
٤٦ یوه ورځ کښي محرومه پاتي شم ٤٦ او ربقاه اسحاق ته ووِ چه په سبب دَ حیث

دَ لونړو په خپل ژوندون نه ویزاره شوي یم که یعقوب ښځه دَ حیث له لونړو
نه په شان دَدیو دَ دي زمکي له لونړو نه واخلي ځما به څه ژوندون وي *

# اتویشتم باب

۱ ا نو اسحاق یعقوب وباله او مبارک ئې کړ اوحکم ئې وکړ او ورته ئې وویل
۲ چه ښځه دَ کنعانیانو له لونړو نه مه کوه ۲ پاسه ستا دَ مور دَ پلار بتوئیل کور
ته پدنا ارام ته لاړ شه او له هلته ښځه ستا دَ مور دَ ورور لابان له لونړو نه
۳ دَ خپل ځان دَپاره وکړه ۳ او الله القادر دِ تا له برکت درکړي تا دِ بارور
۴ کړي او تا دِ ډیر کړي چه ته دَ قامونو ټولي شي ۴ او دَ ابراهام برکت دِ تا له
او ستا اولاد له تا سره درکړي چه ستا دَ مسافرئ دَ زمکي چه الله ابراهام
۵ له ورکړي ده وارث شي ۵ او اسحاق یعقوب ولیږه او هغه پدنا ارام ته لابان
دَ بتوئیل ارمي زوي او دَ ربقاه دَ یعقوب او دَ عیسو دَ مور ورور له روان شه
۶ ۶ چه عیسو ولید چه اسحاق یعقوب له برکت ورکړ او پدنا ارام ته ئې ولیږه چه
له هلته نه ځان له ښځه وکړي چه مبارک کړي ئې وه او حکم ئې ورته کړي
۷ وه اوویلي ئې وه چه دَ کنعانیانو له لونړو نه ښځه مه کوه ۷ او یعقوب دَ خپل
۸ پلار اوخپلي مور واوریدل او پدنا ارام ته لاړ ۸ او عیسو ولیدل چه دَ
۹ کنعان لونړه ځما دَ پلار اسحاق په نظر کښ بدي دي ۹ نو عیسو اسماعیل څخه
لاړ او محلث لور دَ اسماعیل زوي دَ ابراهام خور دَ نبایوث ئې ځان له ښځي
دَپاره دَ خپلو ښځو دَپاسه ئې واخستله
۱۰ ۱۱ ۱۰ نو یعقوب له بیر شابع نه ووت اوحاران ته لاړ ۱۱ او یو ځاي ته ورسید
او هلته ئې شپه کړه ځکه چه نمر پریوتلي وه او دَ هغه ځاي له کاڼرو نه
ئې واخستل او دَ خپل سر دَ لاندِ ئې کښیښودل او په هغه ځاي کښ اوده شه
۱۲ ۱۲ نو خوب ئې ولید او گوره اندرپایه په زمکه ودریدلي ده چه سرئي آسمان
ته رسیدلي او گوره دَ الله فرښتي په هغي ختونکي دي او کوزیدونکي دي -
۱۳ ۱۳ او گوره یَهُوَه په هغي باندِ ولاړ دي و ئې ویل چه زه یَهُوَه ستا دَ پلار
ابراهام الله یم او الله دَ اسحاق یم زمکه چه په هغي باندِ ته ملاست ئې تا

۱۴ له او ستا اولاد له به يې درکړم ۱۴ او ستا اولاد به دَ زمکي دَ خاورو په شان
شي نور پريوته او نورخاته او قطب او سهيل ته به خواره شي او په تا کښ
۱۵ او ستا په اولاد کښ به دَ زمکي ټولي قبيلي متبرکي شي ۱۵ او ګوره زه له تا
سره يم او هر چرته چه ځي تا به ساتم او دي زمکي له به دِ بيرته راولم او
۱۶ تا به نه پريږدم ترهغه چه وکړم څه چه تاته مِ ويلي دِي ۱۶ او يعقوب له خپل
خوبَ وېښ شه و ني ويل په رښتيا يَهْوَهْ په دي ځاي کښ دي او زه نه پوهيدم
۱۷ ۱۷ نو ووېريد او وئي ويل چه دا ځاي څنګه دَ وېرې دي دا نه دي مګر دَ الله
۱۸ کور دي او دا دَ آسمان دروازه دَه ۱۸ نو سحر وختي يعقوب پورته شه هغه
کاڼي چه يې دَ خپل سر دَ لاندِ ايښي وه واخست او ستن يې ودروله او دَ
۱۹ هغي په سر ئي تيل توي کړل ۱۹ او دَ دي ځاي نوم ئي بيتِ ايل کښيښود ليکن
۲۰ دَ هغه ښهر نوم ورونبي لوز وه ۲۰ او يعقوب نذر ومانه و ئي ويل که الله
له ما سره وِي او په دي لار کښ چه په کښ ځم ما وساتي او ما له ډوډئ
۲۱ راکړِي چه وخورم او جامي چه واغوندم ۲۱ او په سلامتئ سره دَ خپل پلار کور
۲۲ ته وِجاروزم يَهْوَهْ به ما له الله وِي ۲۲ او دا کاڼي چه ستن مِ ودرولي دَه
دَ الله کور به شي او له هرڅه چه ما له ئي راکوي زه به يې لسمه تاله درکړم

## نه ويشتم باب

۱ ۲ ۱ نو يعقوب قدمونه واخستل او دَ شرق دَ خلقو زمکي ته لاړ ۲ او وئي
کتل او ګوره په پټي کښ کوهي دي او ګوره هلته دَ ګډو دري کنډکونَ ورڅخه
ملاست دِي چه له هغه کوهي نه به ئي په کنډکونو اوبه ښنولي او لوي کټ
۳ دَ کوهي په خوله باندِ وه ۳ او هلته ټول کنډکونَ به جمع کيدل او کټ به ئي
دَ کوهي له خولي نه رغړاوه او په ګډو به يې اوبه ښنولي او بيا به يې کټ دَ
۴ کوهي په خوله په خپل ځاي اچاوه ۴ نو يعقوب هغوي ته ووِ چه اي ځما
۵ ورونړو تاسو له کومَ يئ و ئي ويل چه مونږ دَ حاران يو ۵ هغوي ته ئي ووِيل
۶ چه لابان دَ ناحور زوي پيژنئ و ئي ويل چه پيژنو ۶ نو هغوي ته يې دويل چه
جوړ دي هغوي وويل چه جوړ دي او ګوره دَ هغه لور راحيل له ګډو سره

۷ راځي ۷ نو وئي ويل چه اوس لا ورځ لويه ده دَ مال دَ جمع کيدلو وقت نه دی
۸ په کړي وبه وڅښنويئ او لاړ شئ و ني څروئ ۸ هغوي وويل چه داسي کولي
نه شو تر هغه چه ټول کندکونَ جمع شي اوکټ دَ کوهي له خولي نه ورغړوي
۹ نو په کړو به وڅښنوو ۹ او چه لا اوس له هغوي سره ئي خبري کولي راحيل
۱۰ دَ خپل پلار دَ کندک سره راغله چه دا ني څرونکي وَه ۱۰ او داسي وشوه چه
يعقوب راحيل دَ خپل ماما لابان لور او دَ خپل ماما لابان کړي وليدي
نو يعقوب نزدي ورغي اوکټ ئي دَ کوهي له خولي ورغړاوه او دَ خپل ماما لابان
۱۱ په کړو ئي اوبه وڅښنولي ۱۱ او يعقوب راحيل ښکل کړله او آواز ئي پورته کړ
۱۲ او وئي ژړل ۱۲ او يعقوب راحيل خبر کړله چه هغه ئي دَ پلار ورور دي
۱۳ او دَ ربقاه زوي دي نو هغه وزغليده او خپل پلار ئي خبر کړ ۱۳ او داسي وشوه
چه لابان خبر دَ يعقوب خپل خوريي واوريد نو ليدو له ئي وزغليد او ورته
غاروت ښکل ئي کړ اوخپل کور ته ئي راوست نو هغه دا ټولي خبري لابان ته
۱۴ بيان کړي ۱۴ او لابان ور ته ووِ چه ته ضرور ځما هډوکي او ځما غوښه يي
۱۵ نو ور سره يوه مياشت ووسيد ۱۵ او لابان يعقوب ته ووِ چه ته ځما ورور يي
ته به ځما ويړيا خدمت کوي څه؟ ما ته ووايه چه ستا مزدوري به څه وِي
۱۶ ۱۶ او دَ لابان دوه لونړه وي چه دَ مشري نوم لياه او دَ کشري راحيل وه-
۱۷ ۱۷ او دَ لياه سترګي کمزوري وي ليکن راحيل ښايسته وَه په صورت کښ او
۱۸ ښايسته وه په ليدو کښ ۱۸ او يعقوب په راحيل بانډِ مين وه و ئي ويل
۱۹ چه دَ کشرئِ لور راحيل دَپارَ زه به اوه کالَ ستا خدمت وکړم ۱۹ او لابان
ووِ چه هغَه تا له درکړم ښه دِي له هغي نه چه بل سړي له ئي ورکړم ما
۲۰ سره اوسه ۲۰ او يعقوب دَ راحيل دَپارَ اوه کالَ خدمت وکړ او دَ هغه په
نظر کښ لږي ورځي ښکاره شوي دَ هغه دَ ميني له سببَ له هغي سره
۲۱ ۲۱ نو يعقوب لابان ته ووِ چه ځما ښځه ما له راکړه ځکه چه ځما ورځي پوره
۲۲ شوي چه هغي له ورشم ۲۲ او لابان دَ هغه ځاي ټول سړي جمع کړل او
۲۳ ميلمستيا ئي وکړله ۲۳ او داسي وشوه په نماښام کښ خپله لور لياه ئي

۲۴ واخستله او هغه له ئي راوستله او هغي له راغي ۲۴ او لابان خپله وينځه
۲۵ زلپاه خپلي لور لياه ته دَ وينځوالئِ دپارَ ورکړله ۲۵ او داسي وشوه سحر ته چه گوره
هغه لياه وه نو لابان ته ئي ووِ داخه بي چه تا له ما سره وکړل دَ راحيل
۲۶ دپارَ مِ تا سره خدمت نه وه کړي څه؟ نو زه دِ ولي وغلولم ۲۶ نو لابان ووِ چه
څمونږ په ځاي کښ داسي نه کيږي چه وړوکي پخوا له مشري ورکړي شي -
۲۷ ۲۷ دَدي هفته پوره کړه او دا به هم تا له ورکړم په خدمت سره چه څما
۲۸ سره خدمت اوه کال نور هم وکړي ۲۸ او يعقوب داسي وکړه او دَ دي هفته
۲۹ ئي پوره کړله او خپله لور راحيل ئي ښځيتوب له ورکړله ۲۹ او لابان خپله
۳۰ وينځه بلهاه خپلي لور راحيل ته دَ هغي د وينځوالئِ دپارَ ورکړله ۳۰ او راحيل
له هم ورغي او په راحيل له لياه نه زيات مين وه او ور سره ئي اوه کالَ
۳۱ نور خدمت وکړ ۳۱ او خداوند وليده چه لياه ناخوښه شوه دَ هغي رحم ئي
۳۲ پرانت ليکن راحيل شنډه وه ۳۲ او لياه حامله شوه زوي ئي راوړ او دَ
هغه نوم ئي رؤبين کښيښود ځکه چه وِ ئي ويل چه خداوند څما سختي ليدلي
۳۳ ده نو اوس به څما خاوند په ما مين شي ۳۳ او بيا حامله شوه زوي ئي
راوړ او وِ ئي ويلِ چه خداوند واوريدله چه زه نا خوښه شوي يم او دا ئي
۳۴ هم ما له راکړ او دَ هغه نوم ئي شمعون کښيښود ۳۴ او بيا حامله شوه او
زوي ئي راوړ او و ئي ويل چه دا وار څما خاوند له ما سره پيوست به شي
چه دري ځامن مِ دَ هغه دپارَ راوړل له هغه سببَ ئي دَ هغه نوم لاوِي
۳۵ کښيښود ۳۵ او بيا حامله شوه او زوي ئي راوړ او و ئي ويل چه دا وار به دَ
خداوند ستاينه وکړم له دي سببَ ئي دَ هغه نوم يهوداه کښيښود بيا له
راوړو نه پاتي شوه +

# ديرشم باب

۱ ۱ او هر کله چه راحيل وليده چه دَ يعقوب دپارَ ئي زوي رانه وړ راحيل
خپلي خور سره کينه وکړه او يعقوب ته ئي ووِ چه ما له اولاد راکړه او که
۲ نه نو زه مرم ۲ نو دَ يعقوب قهر په راحيل باندِ گرم شه او و ئي ويل چه

۳ زه دَ الله په ځاي يم ځه چه دَ کيدېي ميوه ئي له تا نه منع کړه ۳ نو هغي ووِ
چه ګوره ځما وينځه بلهاه هغي له ورشه چه ځما په زنګنونو راوړي او زه هم
۴ له هغي نه اولاد واخلم ۴ نو خپله وينځه بلهاه ئي وله په ښځه والي ورکړله او
۵ يعقوب هغي له ورغي ۵ او بلهاه حامله شوه او زوي ئي دَ يعقوب دَپارَ راوړ
۶ ۶ او راحيل ووِ چه الله ځما فيصله وکړه او ځما آواز ئي اوريدلي دي او زوي
۷ ئي ما ته بخښلي دي دَدي دَپارَ ئي دَ هغه نوم دان کښيښود ۷ او بلهاه دَ
۸ راحيل وينځه بيا حامله شوه دويم زوي ئي دَ يعقوب دَپارَ راوړ ۸ او راحيل
ووِ چه خپلي خور سره مِ لوي پرزول وکړل په هغي زورورہ شوم او دَ هغه
۹ نوم ئي نفتالي کښيښود ۹ او هر کله چه لياه وليده چه له راوړو نه ودريده
خپله وينځه زلپاه ئي واخستله او هغه ئي يعقوب له په ښځه والي ورکړه
۱۰ ۱۱ ۱۰ او زلپاه دَ لياه وينځي دَ يعقوب دَپارَ زوي راوړ ۱۱ او لياه ووِ په بختوري
۱۲ سره او دَ هغه نوم ئي جاد کښيښود ۱۲ او زلپاه دَ لياه وينځي دويم زوي
۱۳ دَ يعقوب دَپارَ راوړ ۱۳ او لياه ووِ چه زه خوشحال يم ځکه چه جينکو زه
۱۴ خوشحاله کړم او دَ هغه نوم ئي اشير کښيښود ۱۴ او دَ غنمو دَ لو په ورځو
کښ رؤبين لاړ او په پټي کښ ئي ځنګلي باتنګنړ بياموندل او هغه ئي خپلي
مور لياه له راوړل او راحيل لياه ته ووِ چه ستا دَ زوي له باتنګنړو نه ما
۱۵ له راکړه ۱۵ نو ورته ئي ووِ چه دا لږه دَه څه چه ځما خاوند دِ واخست
او ځما دَ زوي باتنګنړ هم اخلي څه او راحيل ووِ چه نن شپه ستا دَ زوي
۱۶ دَ باتنګنړ په بدل به تا سره څملي ۱۶ او يعقوب نماښام چه له پټي نه راغي
لياه دَ هغه ليدو دَپارَ ووته و ئي ويل چه ما له راځه ځکه چه دَ خپل زوي
په باتنګنړو سره مِ ته اجاره کړي ئي نو هغه شپه له هغي سره څملاست
۱۷ ۱۷ او الله دَ لياه واوريدل او حامله شوه دَ يعقوب دَپارَ ئي پنځم زوي راوړ
۱۸ ۱۸ او لياه ووِ چه الله اجر ما له راکړ ځکه چه خپله وينځه مِ خپل خاوند
۱۹ له ورکړله نو دَ هغه نوم ئي يساکار کښيښود ۱۹ او لياه بيا حامله شوه شپږم
۲۰ زوي ئي دَ يعقوب دَپارَ راوړ ۲۰ او لياه ووِ الله ما له ښه بخښنه راکړله

اوس په ښما خاوند له ما سره اوسيږي ځکه چه شپږ ځامن مې دَ هغه دَپارَ
راوړي دي نو دَ هغه نوم ئي زبولون کښيښنود ٢١ پس له هغه ئي لور راوړله ٢١
او دَ هغي نوم ئي دِيناه کښيښنود ٢٢ او الله راحيله ياده کړه او الله دَ هغي ٢٢
واوريدل دَ هغي رحم ئي پرانست ٢٣ نو حامله شوه او زوي ئي راوړ او ٢٣
وئي ويل چه الله ښما بيغور لري کړ ٢٤ او دَ هغه نوم ئي يوسف کښيښنود ٢٤
وئي ويل چه خداوند به بل زوي ما ته زيات کړي

٢٥ او داسي وشوه هرکله چه راحيل يوسف راوړي وه چه ٢٥
يعقوب لابان ته ووِ چه ما رخصت کړه چه خپل ځاي او خپلي زمکي ته لاړ
شم ٢٦ ښما ښځي اوښما اولاد چه دَ هغوي دَپارَ مِ ستا خدمت کړي دي ما ٢٦
له راکړه چه لاړ شم ځکه چه هغه ښما خدمت چه مِ ستا کړي دي تا ته
معلوم دي ٢٧ او لابان هغه ته ووِ که ستا په نظر کښ مِ فضل موندلي ٢٧
وي نو پاتي شه ځکه چه په فال مِ معلوم کړي دي چه خداوند ما له ستا
په سبب برکت راکړي دي ٢٨ او وئي ويل چه خپله مزدوري ما ته وښيه نو در ٢٨
به ئي کړم ٢٩ نو هغه ته ئي ووِ چه ته پوهيږي چه څنګه مِ ستا خدمت کړي ٢٩
دي او ستا مال څنګه له ما سره وه ٣٠ ځکه چه تا څخه له ما نه پخوا وُو لږ وُو ٣٠
نو په ډيروالي زيات شول او خداوند ته مبارک کړي هرخوا ته چه زه وګرزيدم
او اوس به زه دَ خپل کور کار کله کوم ٣١ نو وئي ويل تا له څه درکړم او ٣١
يعقوب ووِ چه ما له هيڅ مه راکوه که دا کار ښما دَپارَ وکړي و به جار وزم ستا
ګډي به وڅروم او و به ئي ساتم ٣٢ نن ورځ ستا دَ ټولو ګډو کونو په مينځ کښ ٣٢
تيريږم او له هغو نه به ټکي ټکي او برګي او دَ ګډورو له مينځ نه به تور ګډوري
او هم دَ بزو له مينځ نه به برګي او ټکي ټکي جدا کړم نو دغه به مِ
مزدوري وِي ٣٣ صبا ورځ به ښما رښتيني ما ته ښکاره شي چه ستا دَ وړاندِ ٣٣
ښما دَ مزدورئ دَپارَ راشي او هر هغه چه له بزو ګډو نه ټکي ټکي او
برګي نه وِي او چه په ګډورو کښ تور نه وِي ما څخه به دَ غلا وِي ٣٤ نو لابان ٣٤
ووِ چه ګوره موافق ستا دَ خبري به وِي ٣٥ او به هغي ورځي کښ پسان ٣٥

لیکي دار او برګ او ټولي بزي تکۍ تکۍ او برګي هري یوي چه سپین خال لاره او له
ګډو نه ټول تور ئي جدا کړل او دَ هغه دَ ځامنو په لاسونو ئي وسپارل ۳۶ او دَ ۳۶
ځان او دَ یعقوب په مینځ کښي ئي دَ دریو ورځو لار کړله نو یعقوب دَ لابان دَ
ګنډکونو باقي پاتي شوي به څرول ۳۷ او یعقوب څانګي دَ شني سفیدي او دَ ۳۷
بادام او دَ چنار واخستلي او په هغو کښي ئي سپیني لیکي وکښلي او هغه
سپین والي چه په څانګو کښي وه ښکاره ئي کړ ۳۸ او هغه څانګي چه ئي برګي ۳۸
کړي وي دَ ګنډکونو دَ وړاندِ به ئي په لښتو تلاونو دَ اوبو کښي کښیښودلي چه
کله چي دَ اوبو څښلو دَپارَ راتللي او چه دَ اوبو څښلو دَپارَ راغلي نو به ګرمي کیدلي
۳۹ او ګنډکونه به دَ څانګو دَ وړاندِ تیریده او ګډوري لیکي دار او تکي تکي او ۳۹
برګ به ئي زیږول ۴۰ او یعقوب ګډوري جدا کول او مخونه دَ ګډو ئي لیکي دارو ۴۰
ته او تورو نورو ته دَ ګنډک دَ لابان ئي کړل او خپل ګنډک ئي بیل کړل او
دَ لابان دَ ګنډک سره ئي هغوي نه کړل ۴۱ او داسي وشوه چه زورَوره ګډه ۴۱
به ګرمیدله یعقوب به څانګي دَ ګډو په نظر کښي په لښتو کښي کیښودلي
چه دَ څانګو په مینځ کښي تیري شي ۴۲ او چه ګډي به کمزوري شولي نه به ۴۲
ئي ایښودلي نو کمزوري دَ لابان دَپارَ او زوروري دَ یعقوب دَپارَ شولي-
۴۳ او سړي په زیاتۍ سره زیاتیده او هغه لره ډیر ګنډکونَ شول او ۴۳
وینځي او مریونه او اوښان او خرونه +

## یو دیرشم باب

۱ نو دَ لابان دَ ځامنو خبري ئي واوریدي چه ویل ئي چه یعقوب واخستل ۱
ټول څه چه څمونږ دَ پلار وُو او له هغه نه چه څمونږ دَ پلار وُو دا ټول
عزت ئي پیدا کړي دي ۲ او یعقوب دَ لابان مخ ولید چه ګوره دَ پرون او دَ ۲
ورمي ورځي په شان ورسره نه وه ۳ او خداوند یعقوب ته ووِ چه دَ خپلو ۳
پلرونو زمکي ته او خپلو خپلوانو ته وجاروزه نو له تا سره به یم ۴ او ۴
یعقوب ولیږه او راحیل او لیاه ئي پټي ته خپل ګنډک له وبللي ۵ او ۵
هغوي ته ئي ووِ چه ستاسو دَ پلار مخ وینم چه دَ پرون او دَ ورمي ورځي

۶ په شان له ما سره نه دي ليکن څما دَ پلار الله له ما سره دي ۶ او تاسو
۷ پوهيږئ چه ما په ټول طاقت سره ستاسو دَ پلار خدمت کړي دي ۷ ليکن
ستاسو پلار زه وغلولم او مزدوري څما ئي لس ځله بدله کړي دَه ولي الله
۸ هغه پرې نه ښود چه ما ته ضرر ورسوي ۸ که داسي ئي ووِ چه ټِکي ټِکي به
ستا مزدوري وِي نو ټولو گډو به ټکي ټکي زيږولي که داسي ئي ووِ چه
۹ ليکي داري به ستا مزدوري وِي نو ټولو گډو به ليکي داري زيږولي ۹ په دې شان
۱۰ الله ستا دَ پلار کنډکونَ واخستل ما ته ئي راکړل ۱۰ او داسي وشوه چه
گډي تيريدلي ما خپلي سترگي پورته کړي او په خوب کښ مِکتل چه گوره مکان
۱۱ چه په گډو ختونکي وُو ليکي ليکي او ټکي ټکي او بوک وُو ۱۱ او دَ الله فرښتي
۱۲ په خوب کښ ما ته ووِ چه اي يعقوبَ ومِ ويل گوره زه يم ۱۲ نو هغي
ووِ خپلي سترگي پورته کړه که نه او گوره ټول مکانو چه په گډو ختونکي دي
ليکي ليکي او ټکي ټکي او بوک دي ځکه چه هر څه چه لابان له تا سره
۱۳ کړي دي ومِ ليدل ۱۳ زه دَ بيتِ ايل الله يم چه هلته دِ ستن مسح کړه
او څما دَپاره دِ هلته نذر منلي دي اوس پاڅه او له دي زمکي نه ووزه دَ
۱۴ خپلو خپلانو زمکي ته وجاروزه ۱۴ او راحيل او لياه په ځواب کښ هغه
ته ووِ چه څمونږ دَ پلار په کور کښ څمونږ دَپاره حصّه يا ميراث شته دي
۱۵ څه ۱۵ هغه څخه دَ بيگانه په شان حساب نه يُو څه ځکه چه مونږ ئي خرڅي
۱۶ کړي يو او څمونږ روپئ ئي هم ټولي خوړلي دي ۱۶ ځکه چه هغه ټول دولت
چه الله څمونږ له پلار نه اخستي دي څمونږ او څمونږ دَ ځامنو دي نو هر
۱۷ څه چه الله تا ته ويلي دي وکړه ۱۷ نو يعقوب پاڅيده خپل ځامن او ښځي ئي
۱۸ په اوښانو باندِ سوري کړلي ۱۸ او ټول ډنگر او ټول حاصلات چه ئي
حاصل کړي وُو ډنگر دَ هغه دَ کټي چه په پدن ارام کښ ئي حاصل کړي
۱۹ وُو بوتلل چه خپل پلار اسحاق له دَ کنعان زمکي ته راشي ۱۹ او لابان دَ
۲۰ خپلو گډو سکستلو له تلي وه او راحيل دَ خپل پلار بتان غلا کړل ۲۰ او
۲۱ يعقوب لابان ارمي وغلوه ځکه چه دي په خپلو تښتيدلو خبر نه کړ ۲۱ نو

نو هغه او لښتول چه له هغه سره وُو وتښتېدل او پاڅېدل او له سیند
نه پوري وتل او دَ جلعاد غره ته ئې مخ کړ ۲۲ او په دریمه ورځ لابان خبر ۲۲
کړې شه چه یعقوب وتښتېد ۲۳ نو هغه خپل ورونړه له خپل ځان سره ۲۳
واخستل او دَ اووو ورځو په منزل ورپسې لاړل او دَ جلعاد په غره کښې
ئې لاندې کړه ۲۴ او الله دَ شپې په خوب کښې ارمي لابان له راغې هغه ته ۲۴
ئې وویل چه خبردار اوسه چه یعقوب ته هیڅ ښه او بد و نه وایې ۲۵ او ۲۵
لابان یعقوب ته ورسیده او یعقوب خپل تنبو په غره باندې ودرېولې وه او
لابان له خپلو ورونړو سره دَ جلعاد په غره باندې ودروه ۲۶ او لابان یعقوب ۲۶
ته ووې چه څه دې وکړل او و دې غلولم او ځما لونړه دې په شان دَ توري دَ قیدیانو
بوتللې ۲۷ ولې په پټه وتښتېدلې او و دې غلولم او زه دې خبر نه کړم چه په ۲۷
خوشحالئ او په سندرو او په داریال او په سرود م ستا جیلب کړې وې ۲۸ او ۲۸
زه دې پرې نه ښودلم چه خپل ځامن او لونړه م ښکل کړې وې اوس دې په
دې کار کښې کم عقلي کړې ده ۲۹ له لاسه م کیږي چه تاسو سره بدې وکړم ۲۹
لیکن ستاسو دَ پلار الله بیگاه له ما سره خبرې وکړې و ئې ویل چه خبردار
اوسه چه یعقوب ته هیڅ ښه او بد و نه وایې ۳۰ او اوس ته تلې یې ځکه ۳۰
چه تا دَ خپل پلار دَ کور شوق کړې دې لیکن ځما خدایان دې ولې پټ کړې دې
۳۱ نو یعقوب ځواب ورکړ او لابان ته ئې ووې چه ووېرېدم ځکه چه و م وې ۳۱
هسې نه وې چه خپلې لونړه به له ما نه په زور واخلې ۳۲ هغه چا څخه چه ۳۲
خپل خدایان بیامومې ژوندې دې پاتې نه شي او ځمونږ دَ ورونړو دَ وړاندې ئې
وپېژنه څه ستا چه ما څخه وې او دَ ځان دَ پاره ئې واخله لیکن یعقوب نه
معلومه نه وه چه راحیل هغه غلا کړې وُو ۳۳ نو لابان دَ یعقوب په تنبو ۳۳
کښې او دَ لیاه په تنبو کښې او هم دَ دوارو وینځو په تنبوانو کښې ننوت بیا
ئې نه موندل او دَ لیاه له تنبو نه ووت دَ راحیل په تنبو کښې ننوت ۳۴ لیکن ۳۴
راحیل بتان اخستي وُو او دَ اوښ په کجاوه کښې ئې ایښې وُو او پرې ناسته وه
او لابان ټول تنبو و لټاوه او بیا ئې نه موندل ۳۵ او هغې خپل پلار ته ووې ۳۵

چه څما د صاحب په نظر کښ دِ خفګان نه راځي چه ستا د وړاندِ نه شم
پاڅيدلي ځکه چه په ما کښ د ښځو عادت دي نو لټون ئي وکړ بتان ئي بيا
٣٦ نه موندل ٣٦ نو يعقوب قهرژن شه او له لابان سره ئي جګړه وکړه او
يعقوب ځواب ورکړ لابان ته ئي ووِ چه څما څه تقصير دي او څه مِ خطا
٣٧ چه ته دومره راپسي ګرم شوي يي ٣٧ تا څما ټول اسباب ولټاوه ستا د کور
له ټولو اسبابونو نه څه دِ بيامونډ هغه څما د وروڼو او د خپلو وروڼو په
٣٨ مخ کښ کيږده چه څموږ د دوارو ترمينځ عدالت وکړي ٣٨ دا شل کالَ چه
زه له تا سره وم ستا ګډو او بزو خپل حمل نه دي غورزولي او ستا د
٣٩ کنډکونو ګډان مِ خوړلي نه دِي ٣٩ ستا مات کړي شوي مِ تا له را نه وړل
زه د هغه تاوانِي وم غلا شوي د ورځي يا غلا شوي د شپي به دِ څما له لاسَ
٤٠ غوښت ٤٠ داسي وم چه په ورځ کښ به پړګرمي خوړله او په شپي کښ
٤١ سړِدي او څما له سترګو به څما خوب تښتيده ٤١ سل کالَ شوِي دِي ستا
په کور کښ خدمت مِ وکړ څوارلس کالَ ستا د دوؤ لوڼو د پارَ او شپږ کالَ
٤٢ ستا د کنډکونو د پارَ او لس واره دِ څما مزدوري بدله کړه ٤٢ او که څما د
پلار الله الله د ابراهام او ويره د اسحاق له ما سره نه وي نو اوس به
دِ زه تش روان کړي وم الله څما مصيبت او څما د لاسو خوارِي وليده او
٤٣ بيګاه شپه ئي ملامت کړي ٤٣ او لابان په ځواب کښ يعقوب ته ووِ چه
دا لوڼِه څما لوڼِه او دا خامن څما خامن او دا کنډکونَ څما کنډکونَ دِي او
هر څه چه وينې څما دِي نو نن ورځ د دي خپلو لوڼو سره او د هغې اولاد
٤٤ سره چه ئي راوړي دي څه وکړم ٤٤ نو اوس راشه زه او ته وعده به سره
٤٥ وتړو چه څما او ستا ترمينځ شاهده وِي ٤٥ او يعقوب کاڼي واخست هغه
٤٦ ئي ستنه ودراوله ٤٦ او يعقوب خپلو وروڼو ته ووِ چه کاڼِي را ټول کړئِ
٤٧ او کاڼِي ئي واخستل او ټوپ ئي کړل او هلته په ټوپ ئي وخوړل ٤٧ او
٤٨ لابان ئي يجر سادوتا نوم کښيښود او يعقوب ئي جلعيد نوم کښيښود ٤٨ او
لابان ووِ چه نن ورځ دِ دا ټوپ څما او ستا ترمينځ شاهد وِي له هغه

۴۹ سبب دَ هغه نوم جلعید کښیښودی شه ۴۹ او مصپاه څکه چه ویلي ئي وُو
چه خداوند دِ څما او ستا تر مینځ نګاهبان شِي هر کله چه یو له بله بیل شو
۵۰ ۵۰ که څما لونړو ته تکلیف ورسوي یا بې څما له لونړو نه ښځي واخلي مونږ
۵۱ سره څوک نشته ګوره چه څما او ستا تر مینځ الله شاهد دي ۵۱ او لابان
یعقوب ته ووِ چه ګوره دا ټوپ او ګوره دا ستن چه څما او ستا تر مینځ مِ
۵۲ یښودلي ده ۵۲ دا ټوپ شاهد دي او دا ستن شاهده ده چه زه تا ته له دي
ټوپ نه نه تیریږم او ته ما ته له دي ټوپ نه او له دي ستني نه دَ بدیُ
۵۳ دَپارَ مه تیریږه ۵۳ دَ ابراهام الله او دَ ناحور الله دَ هغوي دَ پلرونو الله دِ
څمونږ په مینځ کښ عدالت وکړي او یعقوب په ویره دَ خپل پلار اسحاق
۵۴ سوګند وخوړ ۵۴ او یعقوب په غره باندِ ذبح وکړله او خپل ورونړه ئي وبلل
۵۵ چه ډوډئ وخوري نو ډوډئ ئي وخوړله او په غره ئي شپه کړله ۵۵ او لابان
سحر وقتي پاڅیده خپل ځامن او لونړه ئي ښکل کړل او هغوي ئي مبارک
کړل او لاړ او لابان خپل ځاي ته وجاروت +

# دودیرشم باب

۱ ۲ ۱ او یعقوب پخپلي لاري لاړ او دَ الله فرښتي پرِ پیښي شولي ۲ او چه یعقوب
هغه ولیدلي و ئي ویل دا دَ الله لښکر دي او دَ هغه ځاي نوم ئي محنیم
۳ کښېښود ۳ او یعقوب له ځان نه وړاندِ دَ سیعیر ملک ته دَ ادوم زمکي ته
۴ خپل ورور عیسو له استاځي ولیږل ۴ او هغوي ته ئي حکم وکړ و ئي ویل
چه څما خاوند عیسو ته داسي ووايِ چه ستا غلام یعقوب داسي ویلي دِي
۵ چه له لابان سره مسافر شوم او تر اوسَ پاتي شوم ۵ او غوا او خره او ګډي
او غلامان او وینځي ما څخه دِي او خپل خاوند ته مِ خبر ولیږه چه ستا
۶ په نظر کښ مهرباني بیاموم ۶ او استاځي یعقوب ته را وجاروتل و ئي ویل
چه ستا ورور عیسو له لاړو او هغه هم ستا دَ لیدو دَپارَ راتلونکي دي
۷ او څلور سوه سړي ورسره دِي ۷ نو یعقوب ډیر وویریده او حال پرِ تنګ
شه او هغه قام چه ورسره وُو او کنړکونه او غوا او اوښان په دوه فوځ

٨ ئې تقسیم کړل ٨ او وئې ویل که عیسو په یو فوځ راشي او هغه ووهي بل
٩ فوځ به خلاص شي ٩ او یعقوب ووې چه اې الله خما دَ پلار ابراهام او الله
خما دَ پلار اسحاق اې یَهُوَه چه ما ته دِې ووې چه خپلې زمکې ته او خپلوانو
١٠ ته و جارووزه نو تا سره به نیکي وکړم ١٠ له تولو احسانونو نه او تولو رښتینو
نه چه له خپل مريي سره دِې کړي دِي زه دَ هیڅ لایق نه یم ځکه چه زه له
خپلې همسا سره له دې اردن نه پورې وتم او اوس دوه فوځونه شوې یم
١١ ١١ بچ مِې کړه که نه دَ خپل ورور له لاسه دَ عیسو له لاس چه زه له هغه
١٢ نه ویریږم چرې نه وِې چه راشي او ما ووهي مور سره له اولاد ١٢ او تا ووې چه
ضرور به له تا سره نیکي وکړم او هم ستا اولاد به دَ دریاب دَ شګو په شان
١٣ کړم چه له ډیروالي نه نه شي شمارلې ١٣ نو هغه شپه ئې هلته تیره کړه
او له هغه څه چه دَ هغه په لاس راغلل هدیه ئې دَ خپل ورور عیسو
١٤ دَ پاره واخستل ١٤ دوه سوَ بزې او شل پسونه دوه سوَ ګډې او شل ګډان
١٥ ١٥ دیرش پیَورې اوښې او دَ هغو جونګې ځلوېښت غوا او لس غوایان شل
١٦ خرې او لس خره ١٦ او هغه ئې دَ خپلو مريونو په لاس کښې ورکړل تولې
تولې بېل او خپلو مريونو ته ئې ووې چه خما په مخ کښې پورې وزئ او فرق
١٧ وکړي دَ تولي او دَ تولي په مینځ کښې ١٧ او ورومبي ته ئې حکم وکړ و ئې ویل چه
خما ورور عیسو به تا برابر پېښ شي او له تا نه پښتنه وکړي ووائي چه دَ
١٨ چا یې او چرته ځې او دا چه ستا په مخ کښې دِې دَ چا دِې ١٨ نو ووایه دا
هدیه ده ستا دَ مريي یعقوب خما خاوند عیسو ته لیږلې شوې ده او ګوره
١٩ هغه هم په مونږ پسې دې ١٩ او هم دا رنګ دویم او دریم او تولو تلونکو ته
چه ګلو پسې وُو حکم ئې وکړ و ئې ویل چه دَ دې خبرې په شان خبرې وکړئ
٢٠ عیسو ته چه ئې بیاموئ ٢٠ او هم ووائِ چه ګوره ستا مريي یعقوب مونږ
پسې دې ځکه چه ئې ووې چه مخ به ئې وګرزوم په هدیې سره چه خما دَ وړاندِ
٢١ ځي او پس به ئې مخ ګورم ښائي چه خما مخ وکړي ٢١ نو هدیه ئې دَ ځان دَ وړاندِ
٢٢ پورې یستله لیکن هغه په لښکر کښې شپه تیره کړه ٢٢ او په شپه کښې پاڅیده

خپلي دوه ښځي او خپلي دوه وينځي او خپل يولس ځامن ئي واخستل او دَ
يبّوق له كودرَ پوري وت ٢٣ او هغوي ئي واخستل او له هغه سيندَ ئي ٢٣
پوريستل او هر څه چه دَ هغه وُو پوريستل ٢٤ او يعقوب يواځي پاتي ٢٤
شه او يو سړي تر سحر پوري له هغه سره پرزول وكړه ٢٥ اوچه ئي ٢٥
وليدل چه توان ني نه وه نو دَ ورانه په بند ئي لاس ولګاوه او دَ يعقوب
دَ ورانه بند زور وخوړ چه له هغه سره ئي پرزول وكړل ٢٦ نو هغه سړي ٢٦
ووِ ما پريږده ځكه چه صباح ختلي دي او و ئي ويل چه تا نه پرېږدم ځو
چه ما له بركت را نه كړي ٢٧ نو هغه ووِ چه ستا څه نوم دي او هغه ووِچه ٢٧
يعقوب ٢٨ نو هغه ووِ چه ستا نوم به يعقوب بيا و نه ښي ويلي ليكن اسرائيل ٢٨
ځكه چه تا الله او انسان سره زور وكړ او غالب شوي ٢٩ نو يعقوب له هغه ٢٩
نه سوال وكړ و ئي ويل چه خپل نوم ما ته ووايه كه نه او هغه ووِ ولي
ځما دَ نوم پښتنه كوي هلته ئي مبارك كړ ٣٠ او يعقوب دَ هغه ځاي نوم ٣٠
پنيئيل كښيښود چه الله مِ مخامخ وليد او ځما ځان بچ شوي دي ٣١ اوچه ٣١
له پنيئيل تير شه نور پرِ وخوت او په خپل ورانه به ګډيده ٣٢ له هغه ٣٢
سبب بني اسرائيل عِرق النسه چه په كښ دي نه خوري تر دي ورځي پوري ځكه
چه بند دَ ورانه دَ يعقوب ئي په عرق النسه باندِ لاس ولګاوه ❖

## دري ديرشم باب

١ او يعقوب خپلي سترګي پورته كړي و ئي كتل چه ګوره عيسو راځي او ور ١
سره څلور سوَ سړِي دِي نو خپل اولاد ئي په لياه او راحيل او دوه وُ وينځو
تقسيم كړ ٢ او وينځي او دَ هغوي اولادِ ورانډِ او لياه او دَ هغي اولادِ ور ٢
پسي او راحيل او يوسف ئي ورستي كړل ٣ او هغه په خپله دَ دوي دَ ورانډِ ٣
تير شه او اوه وارَ ئي زمكي ته سجده وكړه تر هغه چه خپل ورور ته
نژدي شه ٤ او عيسو دَ هغه دَ ليدو دَپارَ وزغليد ٤
او ورتر غاړه وت او دَ هغه په ګردن پريوت او ښكل ئي كړ او و ئي ژړل
٥ بيا ئي سترګي پورته كړي ښځي او اولاد ئي وليدل او و ئي ويل دا در سره څوك ٥

۶ دِي و ني ويل دا اولاد دي چه الله ستا غلام ته بخښلي دي ۶ او وينځې او اولاد
۷ ئي نژدي شول او سجده ئي وکړه ۷ او لياه او دَ هغې اولاد هم نژدي شول
او سجده ئي وکړه او پس يوسف او راحيل نژدي شول او سجده ئي وکړه-
۸ ۸ او و ئي ويل چه دا درسره ټول ټولي چه زه پرِ پيښ شوم څه دي هغه
۹ ووِ چه دَ خپل خاوند په نظر کښ دِ مهرباني بيامومم ۹ او عيسو ووِ چه اي
۱۰ ځما ورورَ ما څخه ډير دِي هغه چه له تا سره دِي ستا دِ وِي ۱۰ نو يعقوب
ووِچه نَه که نَه که مِ ستا په نظر کښ مهرباني موندلي وِي ځما هديه ځما
له لاسَ واخله ځکه چه ستا مخ مِ وليد لکه چه دَ الله مخ لبدي
۱۱ شِي او ته په ما راضِي شوي ۱۱ واخله که نه ځما برکت چه تا ته راوري شوي
دي چه په ما الله احسان کړي دي او چه ما څخه هرڅيز شته دي او په
۱۲ هغه ئي منّت وکړ نو وائي خست ۱۲ نو و ئي ويل چه کوچ وکړو او لاړ
۱۳ شو او زه به ستا دَ وړاندِ لاړ شم ۱۳ او ورته ئي ووِ چه ځما خاوند پوهيږِ
چه اولاد نازک دي او کډي او غوا چه له ما سره دِي لنګي دِي او که
۱۴ هغوِي په يوه ورځ زر بوزي ټول کنډکونَ به ومري ۱۴ ځما خاوند دِ دَ
خپل غلام دَ وړاندِ لاړ شـــي او زه به رو رو ځم موافق له تلو دَ مال
هغه چه ځما په مخ کښ دِي او موافق دَ تلو دَ اولاد تر هغه چه خپل
۱۵ خاوند څخه سيعير ته ورسم ۱۵ او عيسو ووِ چه تا څخه له خلقو چه له
ما سره دِي پري بـــه ږدم نو و ئي ويل دا ولي دَ خپل خاوند په نظر
۱۶ کښ دِ مهرباني وموم ۱۶ نو عيسو په هغه ورځ کښ په خپله لارَ سيعير
۱۷ ته وِجاروت ۱۷ او يعقوب سکوّت ته کوچ وکړ او دَ خپل ځان دَپارَ ئي
کور جوړ کړ او دَ خپل مال دَپارَ ئي ځپرونَ جوړ کړل له هغه سببَ دَ هغه
نوم سکوّت کښيښودي شه
۱۸ ۱۸ نو يعقوب په سلامتيا سره دَ شکم ښهر ته چه دَ کنعان په
زمکه کښ دي راغي له پدنِ ارم نه چه راغي او دَ ښهر دَ وړاندِ ډيره شه
۱۹ ۱۹ او ټوټه دَ پټي ئي و پيرودله چه هلته ئي خپل تنبو ودرولي وه له لاسه

۲۰ دَ ښامنو دَ حمور پلار دَ شکم نه په سلو تولو دَ سپینو زرو ۲۰ اوهلته
ئې مذبح جوړه کړه او دَ هغه نوم ئې ایل الوهي اسرائیل کښیښود ✤

## څلورديرشم باب

۱ ۱ نو دیناه دَ لیاه لور چه دَ یعقوب دَ پارَ ئې راوړې وَه دَ زمکي دَ لونړو دَ
۲ لیدو دَ پارَ ووته ۲ او شکم زوي دَ حمورِ حِوي سردار دَ زمکي هغَه ولیدله
۳ او و ئې نیوله او له هغي سره څملاست او بې پردي ئې کړه ۳ اوځان ئې له
دیناه لور دَ یعقوب سره وتړه جینۍ سره ئې مینه وکړه او جینۍ له ئې دلاسه
۴ ورکړه ۴ او شکم له خپل پلار حمور سره خبري وکړي و ئې ویل چه دا جینۍ
۵ لا له په نکاح واخله ۵ او یعقوب واوریده چه دَ هغه لور دیناه ئې
بې پردي کړله او ځامن ئې له مال سره په میره کښ وُو نو یعقوب چپ شه
۶ څو چه هغه راغلل ۶ او حمور دَ شکم پلار یعقوب له راووت چه ورسره
۷ خبري وکړي ۷ او دَ یعقوب ځامنو چه واوریدل له میري نه راغلل او
سړي په قهر شول او ډېر قهرژن شول ځکه چه له څملاستو نه دَ یعقوب
له لور سره په اسرائیل کښ ئې بدرنګي وکړه او بایده نه وه چه داسي کار
۸ وشه ۸ نو حمور له هغوي سره خبري وکړي و ئې ویل چه زړه ځما دَ زوي شکم
۹ ستاسو دلور سره شوقمند دي وله ئې په نکاح ورکړئ ۹ او له مونږ سره خپلوي
۱۰ وکړئ اوخپلي لونړه مونږ لره راکړئ او ځمونږ لونړه ځان لره واخلئ ۱۰ او له
مونږ سره اوسئ او زمکه ستاسو دَ وړاندِ به وي نو په هغي کښ اوسئ او
۱۱ سوداګري کوئ او پر قبضه وکړئ ۱۱ او شکم دَ هغي پلار او ورونړو ته ئې ووِ
زه ستاسو په نظر کښ مهرباني دِ بیاموم او هرڅه چه ما ته ووائ در به
۱۲ کړم ۱۲ هر څه مَهر او بخشش چه په ما زیات کړئ په هغه شان چه ما
۱۳ ته ووائ در به کړم لیکن جینۍ ما له په نکاح راکړئ ۱۳ او دَ یعقوب ځامنو
شکم او دَ هغه پلار حمور لره په چل جواب ورکړ و ئې ویل په سبب دَ دي
۱۴ چه دَ هغوي خور دیناه ئې بې پردي کړي وه ۱۴ او هغوي ته ئې ووِ چه دا کار نه شو
کولی چه خپله خور نامختون سړي له ورکړو ځکه چه ځمونږ دَ پارَ شرم دي

۱۵ ۱۵ لیکن په دي به مونږ تاسو منظور کړو چه څمونږ په شان شئ هر نارینه
۱۶ ستاسو دِ سنت کړي شي ۱۶ نو خپلي لونړه به درکړو او ستاسو لونړه به
۱۷ دَ ځان دَپارَ واخلو او له تاسره به اوسیږو او یو قوم به شو ۱۷ او که
۱۸ څمونږ وانه وریئ او سنت نه شئ خپله لور به واخلو او لاړ به شو ۱۸ نو
دَ هغوي خبري په نظر دَ حمور اودَ حمور دَ زوي شکم کښ غوره شولي
۱۹ ۱۹ او هغه ځوان دَ هغي کار په کولو کښ درنګ و نه کړ ځکه چه دَ یعقوب
۲۰ لور ئې خوښه وَه او هغَه دَ خپل پلار له ټول کور نه عزّتمند وه ۲۰ نو
حمور او دَ هغه زوي شکم دَ خپل ښهر دروازي ته راغلل او دَ خپل
۲۱ ښهر له خلقو سره ئې خبري وکړي و ئې ویل ۲۱ دا سړي له مونږ سره جوړیږي
په دي زمکه کښ دِ اوسي او په کښ دِ سوداګري کوي چه ګوره زمکه دَ
هغوي دَپارَ ارته دَه دَ هغوي لونړه به ځان له په نکاح واخلو او خپلي لونړه
۲۲ به وله ورکړو ۲۲ فقط په دي شرط سره دا سړي به مونږ غوره کوي چه له
مونږ سره اوسي چه یو قام شُو چه هر نارینه له مونږ نه سنت کړي شي
۲۳ لکه چه هغوي سنّت دِي ۲۳ نو دَ هغو کنډکونَ مالونَ او ټول ځاروِي به
څمونږ نه شِي څه فقط هغوي سره منظوري وکړو چه له مونږ سره به
۲۴ اوسِي ۲۴ نو ټولو وتنکیو له دروازي نه دَ هغه ښهر دَ حمور او دَ هغه
زوي شکم واوریدل او ټول نارینه ټول وتونکي دَ هغه دَ ښهر له دروازي
۲۵ نه سنّت شول ۲۵ او داسي وشول په دریمه ورځ چه دردمند وُو چه دوهُ
خامنو دَ یعقوب شمعون او لیوِي دَ دیناه ورونړو هر یو خپله توره واخستله
۲۶ او په مړانه سره ښهر ته راغلل او ټول نارینه ئې ووژلل ۲۶ او حمور او دَ
هغه زوي شکم ئې دَ توري په مخ ووژلل او دیناه ئې دَ شکم له کورَ واخستله
۲۷ او ووتل ۲۷ دَ یعقوب ځامن په وژلو شویو راغلل او ښهر ئې لوټ کړ
۲۸ چه دوي دَ هغوي خور ئې پلیته کړي وَه ۲۸ او دَ هغو ګډي او دَ هغو
غوا او دَ هغو خره او څه چه په ښهر کښ وُو او څه چه په پټي کښ وُو
۲۹ وائې خستل ۲۹ او ټول دولت دَ هغو او ټول وړوکي دَ هغو او ښځي دَ هغو

۳۰ ئې قيديان کړل او هر څه چه په کور کښې وُو لوټ ئې کړل ۳۰ نو يعقوب
شمعون او ليوِي ته ووِ چه زه تاسو خپه کړم او زه تاسو دَ زمکي په اوسيدونکو
کښې په کنعانيانو او فرزيانو کښې ګنده کړلم چه زه لږ يم په ما بانِدِ به جمع
۳۱ شِي او ما به ووهِي او زه او څما کور بـه ورک شِي ۳۱ او هغوي ووِ چه دَ
کچنيِِ به شان څمونږ له خورسره کار وکړي څه؟

# پنځه ديرشم باب

۱ ۱ او الله يعقوب ته ووِ چه پاسه او بيتِ ايل ته وخيژه او هلته اوسه
او هلته مذبح دَ الله دَپارَ جوړه کړه چه په تا ظاهر شوي وه ستا په تيښتي
۲ کښې ستا دَ ورور عيسو له مخ نه ۲ نو يعقوب خپل ټبر ته او ټولو ته چه
ورسره وُو ووِ چه هغه پردِي خدايان چه ستاسو په مينځ کښې دِي لري
۳ کړئ او ځانونه پاک کړئ او خپلي جامي بدلي کړئ ۳ چه پاسُو او بيتِ ايل ته
وخيژو نو هلته به زه مذبح جوړه کړم دَ الله دَپارَ چه څما دَ تنګئ په ورځ
۴ کښې ئې ما له جواب راکړي دي او په لاره کښې چه تللم له ما سره وه ۴ نو ټول
پردِي خدايان چه دَ هغوي په لاسونو کښې وي او منديِ چه دَ هغوي په
غوږونو کښې وي يعقوب له ئې ورکړي او يعقوب هغه دَ بلوط دَ وني
۵ لاندِ چه په شکِم کښې وَه خښي کړلي ۵ نو وکوچيدل او دَ الله ويره په
ښهرونو باندِ چه ترِ ګير چاپير وُوه او دَ يعقوب په ځامنو پسي لا نه رِل
۶ ۶ او يعقوب لوز ته چه بيتِ ايل دي دَ کنعان په زمکه کښې راغي هغه
۷ او ټول امّت چه ورسره وه ۷ او هلته ئې مذبح جوړه کړه او دَ هغه
ځاي نوم ئې ايل بيتِ ايل کښېښود ځکه چه هلته ورته الله ښکاره شه چه
۸ دَ خپل ورور له مخ نه تښتيدلي وه ۸ او دبوراه دَ ربقاه دايِي ومړله او دَ
بلوط لاندِ دَ بيتِ ايل نه لاندِ خښه شوله او دَ هغه نوم الون باکوت کښېښودلی
شه

۹ ۹ او الله بيا يعقوب ته ښکاره شه چه له پدن ارام نه راغي او برکت
۱۰ ئې ورکړ ۱۰ او الله هغه ته ووِ چه ستا نوم يعقوب دي ستا نوم به بيا يعقوب و نه شِي

۱۱ بللي ليکن ستا نوم به اسرائيل وِي او دَ هغه نوم ئي اسرائيل کښېښود ۱۱ او
الله ورته ووِ چه زهٔ الله القادر يم بارور او ډېر شه او قام او دَ قامونو
۱۲ ټولي له تا نه به شِي او ستا له ملا نه به بادشاهان ووزِي ۱۲ او هغه
زمکه چه مِ ابراهام او اسحاق له ورکړله تا له به ئي درکړم او ستا اولاد
۱۳ له پس له تا نه دا زمکه به ورکوم ۱۳ او په هغه ځاي کښ چه الله له هغه
۱۴ سره خبري کړي وې ترِ وخوت ۱۴ او يعقوب په هغه ځاي کښ چه ئي ورسره
خبري کړي وي ستن ودروله ستن له کڼي نه او په هغي ئي دَ تويولو قربانۍ
۱۵ توي کړي او تيل ئي پرِ واړول ۱۵ او يعقوب دَ هغه ځاي نوم چه هلته
۱۶ الله ورسره خبري کړي وي بيتِ ايل کښېښود ۱۶ او له بيتِ ايل نه وکوچيدل
او څه منزل وه چه افرات ته راشِي نو په راحيل درد دَ کيدېي ولګيده او درد
۱۷ ئي سخت وه ۱۷ او داسي وشوه چه دردونه ئي سخت شول نو داي ئي ور
۱۸ ته ووېل چه مه ويرېږه چه دا هم تا له زوي دي ۱۸ او داسي وشوه چه
روح ئي په تلو کښ وه (ځکه چه هغه ومړله) چه هغي دَ هغه نوم
۱۹ بِن اونِي کښېښود ليکن پلار ئي هغه بن‌يامين وباله ۱۹ نو راحيل ومړله
۲۰ او دَ افراتاه په لار کښ (چه بيت لحم دي) ښخه کړي شوه ۲۰ او يعقوب
ستن دَ هغي په قبر ودروله هغه تر نن ورځي پوري دَ راحيل دَ قبر ستن
۲۱ ده ۲۱ نو اسرائيل وکوچيده او خپل تنبو ئي دَ عيدر برج دَ ورستو ودروه
۲۲ ۲۲ او داسي وشوه چه استوږنه دَ اسرائيل په هغه زمکه کښ وَه چه
روبين لاړ او دَ خپل پلار له سُريتي بلهاه سره ځملاست او اسرائيل واوريده
۲۳ او دَ يعقوب دولس ځامن وُو — ۲۳ دَ لياه ځامن مشر زوي دَ
يعقوب روبين او شمعون او لاوِي او يهوداه او يسّاکار او زبولون وُو
۲۴ ۲۵ ۲۴ او دَ راحيل ځامن يوسف او بنيامين وُو ۲۵ او دَ راحيل دَ وينځي بلهاه
۲۶ ځامن دان او نفتالِي وُو ۲۶ او دَ لياه دَ وينځي زلپاه ځامن جاد او اشير دي
دِي دَ يعقوب ځامن چه دَ هغه دَپارَه په بدن ارام کښ راوړي شِي وُو
۲۷ ۲۷ او يعقوب خپل پلار اسحاق ته ممرې ته قريتِ اربع ته (چه حبرون

دي) راغي چه هلته ابراهام او اسحاق تګاؤ شوي وُو ۲۸ او دَ اسحاق عمر ۲۸
يو سل اتيا كالَ وه ۲۹ او اسحاق روح وسپاره او وفات شه او له خپل ۲۹
قام سره زوړ او ډیر کلني جمع شه او دَ هغه ځامنو عيسو او يعقوب
هغه خښ کړ ✣

# شپږ دیرشم باب

۱ او پیړیِ دَ عیسو (یعني دَ ادوم) دا دِي ۲ عیسو خپلي ښځي دَ کنعان له لونړو ۱/۲
نه واخستلي عاداه دَ ایلون حِتّي لور او اهلیباماه لور دَ عناه لور دَ صبعون
حِوِي ۳ او باسمث لور دَ اسمعیل او خور دَ نبایوث ۴ او عاداه دَ عیسو ۳/۴
دَپارَ الیفاز راوړ او باسمث رعوئیل راوړ ۵ او اهلیباماه یعوش او یعلام ۵
او قورح راوړل دا دِي ځامن دَ عیسو چه دَ هغه دَپارَ دَ کنعان په زمکه
کښ پیدا شوِي وُو ۶ او عیسو خپلي ښځي او خپل ځامن او خپلي لونړه او ۶
ټول ځانونَ دَ خپل کور او خپل ډنګر او ټول ځاروِي خپل او ټول مالونَ
چه دَ کنعان په زمکه کښ ئي حاصل کړِي وُو واخستل او دَ خپل ورور
یعقوب له وړاندِ نه لاړ شه ۷ ځکه چه دَ هغوي مالونه زیات وُو چه په ۷
یو ځاي کښ استوږنه وکړِي او هغه زمکه چه په کښ وسیدل توان ئي
نه لره چه زغم وکړِي په سبب دَ مالونو دَ هغوي ۸ او عیسو په سیعیر ۸
غره کښ اوسیدونکي شه عیسو هم هغَه ادوم دي ۹ او پیړیِ دَ عیسو ۹
پلار دَ ادومیانو دَ سیعیر په غره کښ دا دِي ۱۰ او نومونَ دَ عیسو دَ ځامنو ۱۰
دا دِي الیفز دَ عیسو دَ ښځي عاداه زوي او رعوئیل دَ عیسو دَ ښځي باسمث
زوي ۱۱ او دَ الیفز ځامن تیمان او اومار او صفو او جعثام او قنز وُو ۱۱
۱۲ او تمنع دَ عیسو دَ زوي الیفز سرینه وَه چه دَ الیفز دَپارَ ئي عمالیق ۱۲
راوړ دَ عیسو دَ ښځي عاداه ځامن دوي وُو ۱۳ او ځامن دَ رعوئیل دا دِي ۱۳
نحث او زرح او شمّاه او مزاه دوي دَ عیسو دَ ښځي باسمث ځامن وُو ۱۴ او ۱۴
ځامن دَ عیسو دَ ښځي اهلیباماه لور دَ عناه لور دَ صبعون دوي وُو او دَ
عیسو دَپارَ یعوش او یعلام او قورح راوړل ۱۵ دا دِي سرداران دَ ځامنو ۱۵

دَ عیسو ځامن دَ الیفاز دَ مشر زوي دَ عیسو سردار
١٦ نیمان سردار اومار سردار صفو سردار قنز ١٦ سردار قورح سردار جعتام
سردار عمالیق دوي سرداران دَ الیفز دَ ادوم په زمکه کښې وُو دوي دَ عاده
١٧ ځامن وُو ١٧ او دَ عیسو دَ زوي رعوئیل ځامن دوي دِي سردار نحث سردار
زرح سردار شمّاه سردار مزاه دوي سرداران دَ رعوئیل دَ ادوم په زمکه
١٨ کښې وُو دوي دَ عیسو دَ ښځې باسمث ځامن وُو ١٨ او دَ عیسو دَ ښځې
اهلیباماه ځامن دوي وُو سردار یعوش سردار یعلام سردار قورح دوي
١٩ سرداران دَ اهُلیباماه لور دَ عناه دَ عیسو دَ ښځې وُو ١٩ دوي دِي ځامن دَ
عیسو چه هغه ادوم دي او دوي دِي سرداران دَ هغوي
٢٠ ٢٠ او ځامن دَ سیعیر حوري دَ زمکي اوسیدونکي دوي دِي لوطان او
٢١ شوبال او صبعون او عناه ٢١ او دیشون او ایصر او دیشان دا سرداران چه
٢٢ دَ حوریانو ځامن دَ سیعیر دَ ادوم په زمکه کښې راغلي دِي ٢٢ او دَ لوطان
٢٣ ځامن حوري او هیمان وُو او دَ لوطان خور تمنع وه ٢٣ او دَ شوبال ځامن
٢٤ دوي وُو علوان او مانحث او عیبال او شفو او اونام ٢٤ او دَ صبعون
ځامن دوي دِي ایاه او عناه دا هغه عناه وه چه کرمي چینې ئي په بیابان
٢٥ کښې بیاموندلي چه دَ خپل پلار صبعون خره ئي څرول ٢٥ او دَ عناه ځامن
٢٦ دوي وُو دیشون او دَ عناه لور اهُلیباماه ٢٦ او دَ دیشون ځامن دوي وُو
٢٧ حمدان او اشبان او یتران او کران ٢٧ دَ ایصر ځامن دوي وُو بلهان او زعوان
٢٨ ٢٩ او عقان ٢٨ دَ دیشان ځامن دوي وُو عوص او اران ٢٩ او دَ حوریانو سرداران
٣٠ دوي وُو سردار لوطان سردار شوبال سردار صبعون سردار عناه ٣٠ سردار
دیشون سردار عیصر سردار دیشان دَ حوریانو سرداران له خپلو سردارانو
سره دَ سیعیر په زمکه کښې دوي وُو
٣١ ٣١ دوي بادشاهان دِي چه ئي بادشاهي کړي ده دَ ادوم په زمکه
٣٢ پخوا له هغې نه چه بادشاه په بني اسرائیلو باندِې بادشاهي کړي ده ٣٢ او بلع دَ
بعور زوي په ادوم کښې بادشاهي وکړه او دَ هغه دَ ښهر نوم دِنهاباه وه

۳۳ او بلع ومړ او یوباب دَ زرح زوي له بصراه نه دَ هغه په ځاي کښې ۳۳
بادشاهي وکړه ۳۴ او یوباب ومړ او حوشام له تیماني زمکې نه دَ هغه ۳۴
په ځاي کښې بادشاهي وکړه ۳۵ او حوشام و مړ او هدد دَ بدد زوي چه ۳۵
مدیانو لره ئې په میره دَ موآب کښې شکست ورکړ دَ هغه په ځاي کښې
بادشاهي وکړه او دَ هغه دَ ښهر نوم عویث وه ۳۶ او هدد ومړ او سملاه ۳۶
له مسریقاه نه دَ هغه په ځاي کښې بادشاهي وکړه ۳۷ او سملاه ومړ او ۳۷
شاؤل دَ رحوبوث دَ سیند په غاړه دَ هغه په ځاي کښې بادشاهي وکړه
۳۸ او شاؤل ومړ او بعل‌حانان دَکبور زوي دَ هغه په ځاي کښې بادشاهي ۳۸
وکړه ۳۹ او بعل‌حانان دَ عکبور زوي ومړ او هدر دَ هغه په ځاي کښې ۳۹
بادشاهي وکړه او دَ هغه دَ ښهر نوم پاعو وه او دَ هغه دَ ښځې نوم
مهیطبیل وه دَ مطرید لور دَ میزاهاب لور وَه ۴۰ او نومونه دَ سردارانو ۴۰
دَ عیسو موافق له قبیلو او له ځایونو او له نومونو دَ هغوي دا وُو سردار
تمنع سردار علواه سردار یتیث ۴۱ سردار اهُلیباماه سردار ایلاه سردار ۴۱
پینون ۴۲ سردار قنز سردار تیمان سردار مبصر ۴۳ سردار مکدیئیل ۴۲ ۴۳
سردار عیرام دوي دِي سرداران دَ ادوم موافق دَ هغوي دَ مسکونو
دَ هغوي دَ قبضې په زمکه کښې دا دي عیسو پلار دَ ادومیانو ✻

## اوه دیرشم باب

۱ او یعقوب دَ کنعان په زمکه کښې دَ خپل پلار دَ استوږنې په زمکه کښې ۱
ووسید ۲ احوال دَ یعقوب دا دي یوسف دَ اوه لس کالو وه چه له خپلو ۲
ورونړو سره ئې ګډې څرولې او ځوان دَ خپل پلار دَ ښځو دَ بلهاه له ځامنو
او دَ زلپاه له ځامنو سره وه او یوسف دَ هغو بدې خبرې دَ هغو پلار ته
راوړلې ۳ او اسرائیل په یوسف باندِ له خپلو ټولو ځامنو نه ډیره مینه ۳
کوله ځکه چه دَ هغه دَ زوړوالي زوي وه او دَ هغه دَپارَ ئې رنګارنګ قبا
جوړه کړه ۴ نو چه دَ هغه ورونړو ولیده چه دَ هغوي پلار په هغه باندِ دَ ۴
هغه له ټولو ورونړو نه مینه کوِي نو ورسره ئې کینه وکړه او پِرِ سلام به

۵ ئي نه آچوه ۵ او يوسف خوب وليده او خپل ورونړه ئي خبر کړل نو په هغه
۶ بانډې ئي کينه زياته شوه ۶ او هغوي ته ئي ووې چه٠ واورئ هغه خوب چه
۷ مې ليدلي دي ۷ گوره په پټي کښ کېدي مو ترلي او گوره زما کېړي پاڅيده
او ودريده ٠ او گوره ستاسو کېډئ گير چاپير شولي او زما کېړئ ته ئي سجده
۸ وکړه ۸ او ورونړه ئي ورته ووې چه نو ته به په مونږ بادشاهي وکړي څه يا په
مونږ بانډې به حکم وکړي څه او په سبب د هغه د خوبونو او د هغه د
۹ خبرو به هغه ئي کينه زياته شوله ۹ او بيا بل خوب ئي وليد او هغه ئي
خپلو ورونړو ته بيان کړ و ئي ويل چه گوره بيا مې خوب وليد او گوره
۱۰ نور او سپوږمئ او يو لسو ستورو ما ته سجده وکړه ۱۰ او پلار او خپلو
ورونړو ته ئي بيان وکړ او د هغه پلار په هغه ملامته کړ هغه ته ئي
ووې چه دا خوب چه دې ليدلي دي څه دي کيږي څه چه زه او ستا مور
۱۱ او ستا ورونړه راشو او تا ته په زمکي سجده وکړو ۱۱ نو د هغه ورونړو په
۱۲ هغه کينه وکړه ليکن پلار ئي هغه خبره وساتله ۱۲ او د هغه ورونړه
۱۳ د پلار د کنډکونو څرولو د پاره شکم ته لاړل ۱۳ او اسرائيل يوسف ته ووې
چه ستا ورونړه په شکم کښ نه څروي څه راشه چه تا هغوي له وليږم
۱۴ او هغه ور ته ووې چه دا يم ۱۴ هغه ته ئي ووې چه لاړ شه او
د خپلو ورونړو سلامتيا او د کنډکونو سلامتيا وگوره او ما له خبر
۱۵ راوړه نو هغه ئي د حبرون له دري نه وليږه او هغه شکم ته راغي ۱۵ او
سړي هغه بيامونډ او گوره هغه په پټي کښ گرزي او سړي له
۱۶ هغه نه پښتنه وکړه و ئي ويل چه څه لټوي ۱۶ او هغه ووې چه زه
۱۷ خپل ورونړه لټوم ما خبر کړه چه چرته څروي ۱۷ نو سړي ووې چه له دي
ځاي ئي کوچ وکړ ځکه چه له هغوي مې واوريدل چه ويل ئي چه دوثان ته
ځو نو يوسف په خپلو ورونړو پسي لاړ شه او په دوثان کښ ئي هغوي
۱۸ بيامونډل ۱۸ او هغوي دي له وړاي وليد چه لا ور ته نژدي شوي نه وه
۱۹ او هغوي ورله حيله جوړه کړه چه ئي ووژني ۱۹ او يو بل ته ئي ووې گوره دا د

خوبونو خاوند راځي ۲۰ نو اوس راشئ چه هغه ووژنو او په يوه کنس له کوهو ۲۰
نه ئې وغورزوو او ووايو چه هغه وحشي ښاور خوړلي دي نو ګورو به چه
دده خوبونه به څنګه شي ۲۱ او رؤبين واوريدله او هغه ئې د هغوي له ۲۱
لاسونو نه خلاص کړ او وئې ويل چه نه ئې وژنو ۲۲ نو رؤبين هغوي ته ووې ۲۲
چه وينه مه توئوئ هغه په دي کوهي کنس چه په ميره کښ دي وغورزوئ
او لاس ورته مه اچوئ ددي دپاره چه د هغوي له لاس ئې خلاص کړي
او خپل پلار ته ئې ورولي ۲۳ او داسي وشوه چه يوسف خپلو ورونړو له ۲۳
راغي نو له يوسف نه ئې د هغه خلقه وويستله هغه رنګارنګ خلقه چه
پري وه ۲۴ او وئې نيوه او په کوهي کنس ئې وغورزوه او کوهي خالي وه ۲۴
او اوبه په کنس نه وي ۲۵ او هغوي کښيناستل چه ډوډئ وخوري او ۲۵
خپلي سترګي ئې پورته کړلي او وئې ليدل او ګوره چه د اسمعيليانو کاروان
له جلعاد نه راته او د هغوي اوښان په خوشبويو او په بلسانو او په
مرو سره بارشوي وو تلونکي وه چه مصر ته ئې کوز کړي ۲۶ او يهوداه ۲۶
خپلو ورونړو ته ووې چه څه فائده ده چه خپل ورور ووژنو او وينې ئې
پټي کړو ۲۷ راشئ چه هغه په اسمعيليانو خرڅ کړو او ځمونږ لاسونه دِ ۲۷
په هغه نه وي ځکه چه هغه ځمونږ ورور او ځمونږ غوښه دي نو د
هغه ورونړو واوريدل ۲۸ او د مديان سري سوداګران تيريدل او يوسف ۲۸
ئې له کوهي راکښنه او وئې خيژوه او يوسف ئې په اسمعيليانو باندِ په
شلو روپو خرڅ کړ او هغوي يوسف مصر ته راوست ۲۹ او رؤبين کوهي ۲۹
ته وجاروت او ګوره چه يوسف په کوهي کنس نه وه نو خپلي جامي ئې
وشلولي ۳۰ او خپلو ورونړو ته وجاروت و ئې ويل چه هلک نشته او زه ۳۰
چرته لاړ شم ۳۱ او د يوسف خلقه ئې واخستله او ورغومي د بيزي ئې ذبح ۳۱
کړ او خلقه ئې په وينو کښ لونده کړه ۳۲ او هغه رنګارنګ خلقه ئې وليږله ۳۲
او خپل پلار له ئې ورسوله وئې ويل چه دا مونږ بيامونده معلومه کړه
چه ستا د زوي خلقه ده که نه ۳۳ او وئې پيژندله او وئې ويل چه ځما ۳۳

دَ زوي خلقه دَه او وحشِي ځناور هغه خوړلي دي يوسف خامخا څيرې
۳۴ کړې شوي دي ۳۴ نو يعقوب خپلې جامې وشلولې او شړې ئې لنګ کړله او
۳۵ ډيرې ورځې ئې دَ خپل زوي دَپارَ وير وکړ ۳۵ او دَ هغه ټول ځامن او دَ
هغه ټولې لوڼړه پاځيدل چه تسلّه ورکړي خو دَ هغو تسلّه ئې منظوره
نه کړه او وئي ويل چه زه به خپل زوي له عالمِ ارواح ته په وير کوز شم
۳۶ او دَ هغه پلار دَ هغه دَپارَ وژړل ۳۶ او مديانيانو هغه په مصر کښې
په فوطيفر خواجه سرا دَ فرعون دَ جلادانو په سردارئ خرڅ کړ +

## اته ديرشم باب

۱ ۱ او داسې وشوه په هغه زمانه کښې چه يهوداه له خپلو ورونړو نه کوز
۲ شه او يو عدلامِي سړِي ته چه دَ هغه نوم حيراه وه مايل شه ۲ او
هلته يهوداه دَ کنعانِي سړِي لور چه نوم ئې شوع وه وليدله او هغه ئې
۳ واخستله او وله ورغي ۳ او هغه حامله شوه او زوي ئې راوړ او دَ
۴ هغه نوم ئې عير کښېښود ۴ او بيا حامله شوه او زوي ئې راوړه او دَ
۵ هغه نوم ئې اونان کښېښود ۵ او بيا وشوه او زوي ئې راوړ او دَ هغه
نوم ئې شيلاه کښېښود او هغه په کزيب کښې وه چه هغه ئې راوړ
۶ ۶ او يهوداه دَ خپل مشر زوي عير دَپارَ ښځه وکړله او نوم ئې تامار
۷ وه ۷ او دَ يهوداه مشر زوي عير دَ خداوند په نظر کښې شرير وه او خداوند
۸ هغه وواژه ۸ او يهوداه اونان ته ووِ چه دَ خپل ورور ښځې ځنه ورځه
۹ او واده ورسره وکړه او دَ خپل ورور دَپارَ نسل قائم کړه ۹ ليکن اونان
پوه شه چه دا نسل به ځما دَپارَ نه وِي او داسې وشوه چه به دَ خپل
ورور ښځې له ته په زمکه ئې خرابوله دَ دي دَپارَ چه خپل ورور له نسل
۱۰ ور نه کړِي ۱۰ او هغه چه به ئې کول دَ خداوند په نظر کښې بد ښکاره شول
۱۱ او هغه ئې هم وواژه ۱۱ نو يهوداه خپلې نګور تامار ته ووِ چه دَ خپل
پلار په کور کښې کښېنه باتي شه تر هغه چه ځما زوي شيلاه لوي شي ځکه
چه وِ ئې ويل چرِ نه وِي چه هغه هم دَ هغه دَ نورو ورونړو په شان ومري

او تامار لاړله او دَ خپل پلار په کور کښې پاتې شوه ۱۲ او پس له ډیرو ۱۲
ورځو نه دَ یهوداه ښځه دَ شوع لور ومړله او یهوداه تسلّه وموندله او
دَ خپلو گډو سکښتونکو ته هغه او دَ هغه دوستَ حیراه عدلامِي
تِمناث ته وخوت ۱۳ او تامار ته خبر وکړي شه چه گوره ستا خسر تِمناث ۱۳
ته خیژِي دَ خپلو گډو سکښتلو دَپارَ ۱۴ او هغې دَ خپل کُنډتانه جامې ۱۴
له خپل ځان نه وویستلې او په برقع پټه شوه او ځان ئې وُنغښت او
دَ عینیم په وره کښې چه دَ تِمناث په لاره کښې دي کښیناستله ځکه
چه و ئې لیده چه شیلاه لوي شه او دا وله په نکاح ور نه کړي شوه
۱۵ او یهوداه هغه ولیده او په هغې ئې دَ فاحشې گمان وکړ ځکه چه مخ ۱۵
ئې پټ وه ۱۶ نو په لارې هغې ته مائل شه او و ئې ویل چه راځه که ۱۶
نه چه زه درځم ځکه چه نه ئې پیژاندله چه دَ هغه نګور ده هغې ووِ
چه څه به راکوي چه ما له راځي ۱۷ نو و ئې ویل چه زه به ورغومي دَ ۱۷
بیزو له کنډکونو نه درولیږم نو و ئې ویل چه ما له به گانړه راکړي څه
تر هغه چه ئې را ولیږي ۱۸ او هغه ووِ چه تا له څه گانړه درکړم او ۱۸
هغې ووِ چه ستا مهر او ستا حمیل او ستا همسا چه ستا په لاس کښې
ده نو ور ئې کړل او وله ورغې نو ترِ حامله شوه ۱۹ نو پاڅیدله او لاړله ۱۹
او خپله برقع ئې له ځان نه لرې کړه او دَ خپل کنډتون جامې ئې واغوستې
۲۰ او یهوداه دَ خپل عدلامِي دوست په لاس ورغومي دَ بیزو ورولیږه ۲۰
چه دَ ښځې له لاسَ گانړه واخلِي خو بیا ئې نه موندله ۲۱ نو دَ هغه ۲۱
ځاي له سړو نه ئې پښتنه وکړه و ئې ویل هغه فاحشه چه دَ عینیم
په لاره کښې وَه چرته دَه و ئې ویل چه دلته فاحشه نه وه ۲۲ نو ۲۲
یهوداه ته وجاروت او و ئې ویل چه هغه مِ بیا نه موندله او دَ
هغه ځاي سړو هم ووِ چه دلته فاحشه نه وه ۲۳ نو یهوداه ووِ ۲۳
چه ځان له دِ ئې واخلي چرِ نه وِي چه رسوا شو گوره دا ورغومي مِ
ولیږه لیکن تا هغه بیا نه موندله ۲۴ او دا سې وشوه چه درې میاشتې ۲۴

وشولي چه يهوداه ته خبر ورسيده چه ستا نګور تامار زنا كړي ده اوګوره
له زنا نه حامله هم ده او يهوداه ووِ چه هغه راوباسئِ چه وسيزلي شي
۲۵ ۲۵ چه هغه راويستي شوه خپل خسر له ئي وليږه و ئي ويل چه له هغه
سړي نه چه دا څيزونَ ئي دي زه حامله يم او وئي ويل چه معلوم
۲۶ كړه كه نه چه دا مهر او حميل او همسا دَ چا دِي ۲۶ او يهوداه معلوم
كړل او وئي ويل چه له ما نه زياته صادقه دَه په سبب دَدي چه هغه
۲۷ مِ خپل زوي شيلاه له ور نه كړه او هغه ئي بيا و نه پيژندله ۲۷ او داسي
وشوه په وقت دَ هغي دَ راوړ كښ ګوره دَ هغي په ګيډه كښ غبرګوني
۲۸ وُو ۲۸ او دَ هغي دَ راوړ په وقت كښ داسي وشوه چه يوخپل لاس
وويست او دايي واخست او په لاس ئي سور ريښم وتاړه او وئي
۲۹ ويل چه دي ورومبي وتلي دي ۲۹ او داسي وشوه چه خپل لاس ئي راكښه
اوګوره ورور ئي ووت او وئي ويل چه تا ولي چاود كړي دي دا چاود دِ په
۳۰ تا وِي او دَ هغه نوم ئي پرص كښيښود ۳۰ پس له هغه ورور ئي ووت چه
په لاس ئي سور ريښم وه او دَ هغه نوم زارح كښيښودي شه ❊

## نه ديرشم باب

۱ ۱ او يوسف مصر ته كوز كړي شه او پوطيفر خواجه سرا دَ فرعون سردار دَ
جلادانو مصرِي سړِي هغه له لاسَ دَ اسمعيليانو نه چه هغه ئي هلته
۲ كوز كړي وه وپيرووده ۲ او خداوند له يوسف سره وه او كامياب شه او دَ
۳ خپل مصرِي خاوند په كور كښ وه ۳ او خاوند ئي وليدل چه خداوند ور
سره دي او ټول څه چه ئي كول خداوند به دَده په لاس كښ ترسره كول
۴ ۴ نو يوسف دَ هغه په نظر كښ مهرباني بياموندهَ دَ هغه خدمت ئي
كاوه او هغه ئي په خپل كور مختار كړ او ټول څه چه دَده وه دَ هغه
۵ په لاس كښ ئي ورکړل ۵ او داسي وشوه له هغه وقت نه چه هغه ئي په
خپل كور او په ټول هغه څه چه دَده وه مختار كړ نو خداوند دَ مصرِي كور
به دَ يوسف له سببَ بركت ورکړ او دَ خداوند بركت په ټول هغه څه چه

چه ده په کور کښ او په پټي کښ ٦ نو ټول هغه څه چه ده وه ٦
د يوسف په لاس کښ پرېښودل او ده سره هيڅ څيز نه وه چه پرې خبر
وه بې له دوډيْ نه چه به ئي خوړله او يوسف په صورت ښائسته او په
ليدو کښ ښکلي وه ٧ او پس له دي کارونو داسي وشوه چه د هغه د ٧
خاوند ښځي خپلي سترګي يوسف ته پورته کړلي او وئي ويل چه له ما سره
څمله ٨ نو انکار ئي وکړ او د خپل خاوند ښځي ته ئي ووېل کوره څما خاوند ٨
هغه څه چه له ما سره په کور کښ دي خبر ترې نه دي او ټول څه چه د
هغه دي څما په لاس کښ ئي راکړي دي ٩ په دې کور کښ له ما نه لوي ٩
نشته او له ما نه ئي هيڅ څيز منع کړي نه دي بې له تا نه څکه چه ته د
هغه ښځه يې نو دا لوئ خرابي به څنګه وکړم او د الله ګناه به وکړم ١٠ او ١٠
داسي وشوه چه هغي به ورځ په ورځ يوسف ته خبري کولي او هغه به د
هغي نه آوريدلي چه هغي څخه څملي او له هغي سره وي ١١ او داسي وشوه ١١
چه په يوه ورځ چه کورته د خپل کار دپار ننوت او هلته په کورکښ څوک
سړي د کور نه وه ١٢ نو هغه ئي د هغه له جامو نه ونيوه وئي ويل چه ١٢
څما سره څمله او هغه خپله جامه د هغي په لاس کښ پرېښودله او وتښتيد
او باهر ووت ١٣ او داسي وشوه چه ئي وليده چه هغه خپله جامه په ١٣
لاس کښ مې پرېښودله او بهر ته وتښتيد ١٤ نو هغي د خپل کور سړو ته ١٤
آواز وکړ او ورسره ئي خبري وکړي وئي ويل چه ګورئ دا عبري سړي ئي موږ
له راوستي دي چه له موږ سره ټوقي وکړي هغه ما له راغي چه له ما
سره څملي او ما په لوي آواز سره چغي وکړي ١٥ او داسي وشوه چه ئي ١٥
واوريدل چه ما خپل آواز پورته کړ او چغي مې کړي نو هغه خپله جامه
ما ته پرېښودله او وتښتيد او بهر ووت ١٦ او د هغه جامه ئي څان څخه ١٦
کښيښوه تر هغه پوري چه د هغه خاوند خپل کورته راغي ١٧ او هغه ته ١٧
ئي سوافق د دي خبرو بيان وکړ وئي ويل چه هغه عبري مري چه دې
موږ له راوستي دي له ما سره ټوقو کولو دپاره ما له راننه وت ١٨ او داسي ١٨

وشوه چه خپل آواز مِ پورته کړ او چغي مِ وکړي نو هغه خپله جامه
١٩ ني ما څخه پرېښودله او بهر وتښتيد ١٩ او داسي وشوه چه دَ هغه خاوند
دَ خپلي ښځي خبري واوريدي چه هغه ته ئې خبري وکړي و ني ويل چه
دَ دي خبرو په شان ستا سړِي له ما سره کړِي دِي نو قهر ئې تود شه-
٢٠ ٢٠ نو دَ يوسف خاوند هغه ونيوه او هغه ئې په قيدخانه کښ واچوه چه
٢١ دَ بادشاه قيديان په کښ قيد وُو او هلته په قيدخاني کښ وه ٢١ ليکن
خدااونه له يوسف سره وه او له هغه سره ئې احسان وکړ او هغه له ني دَ
٢٢ قيدخاني دَ داروغه په نظر کښ عزت ورکړ ٢٢ او دَ قيدخاني داروغه ټول
قيديان چه په قيدخاني کښ وُو دَ يوسف په لاس کښ ورکړل او هرڅه
٢٣ چه به ئې هلته کول هغه کوونکي وه ٢٣ او دَ قيدخاني داروغه به ټول هغه
څه چه دَ هغه په لاس کښ وه نظر نه کاوه ځکه چه خداوند ور سره وه
او هرڅه چه به هغه کول خداوند به ئې سره کول ✤

# څلوېښتم باب

١ ١ پس له دي خبرو نه داسي وشوه چه ساقِي او نانباپي دَ مصر دَ بادشاه
٢ دَ خپل خاوند بادشاه دَ مصر خطا وکړه ٢ او فرعون خپلو دواړو سردارانو
٣ په مشر دَ ساقيانو او په مشر دَ نانباپانو قهرژن شه ٣ او هغوي ئې
په قيد کښ په کور دَ سردار دَ جلادپانو کښ په قيدخانه کښ هغه
٤ ځاي چه يوسف په هغه کښ قيد کړي شوي وه واچول ٤ او سردار
دَ جلادپانو يوسف ته وسپارل او هغه ئې خدمت وکړ او هغوي څو
٥ ورځي په قيد کښ وُو ٥ او هغوي دواړو خوب وليده هر سړِي خپل
خوب په يوه شپي کښ او خوب هر سړِي موافق دَ بيان دَ خپل خوب ساقِي
٦ او نانباپي دَ مصر دَ بادشاه چه په قيدخانه کښ قيد شوي وُو ٦ نو يوسف
سحر هغوي له ورننوت او هغوي ئې وليدل او ګوره هغوي خفه وُو-
٧ ٧ او له سردارانو دَ فرعون نه چه ورسره وُو په قيد کښ دَ خپل خاوند په
٨ کور کښ پوښتنه ئې وکړه و ني ويل چه ستاسو مخونه نن ولي خفه دِي ٨ نو

ور ته یې وویل چه مونږ خوب لیدلي دي او تعبیر کوونکي دَ هغه نشته او
یوسف هغوي ته ووِ چه تعبیرونَ دَ الله نه دِي څه ماته یې ووایئ که نه
۹ نو سردار دَ ساقیانو خپل خوب یوسف ته بیان کړ هغه ته یې وویل 9
چه څما په خوب کښې کوره څما دَ وړاندِ انګور وه ۱۰ او دَ انګور دري ښاخونَ 10
وُو او کویا چه غوټۍ یې وکړلي او ګلونه شول او دَ انګورو غوشي یې پخې
شولي ۱۱ او دَ فرعون کاسه مِ په لاس کښې وَه او انګور مِ واخستل او 11
نچوړِي مِ کړل دَ فرعون په کاسه کښې او کاسه مِ دَ فرعون په لاس کښې
ورکړه ۱۲ او یوسف هغه ته ووِ چه دَ هغه تعبیر دا دي دري ښاخونَ دري ورځې 12
دِي ۱۳ په دري ورځو کښې به فرعون ستا سر پورته کړِي او تا به خپل منصب 13
ته را وغواړِي او ته به دَ فرعون کاسه دَ هغه په لاس کښې ورکړي دَ پخوا په
شان چه ته دَ هغه ساقي وي ۱۴ لیکن ما یاد کړه چه ستا ښه وشي او 14
له ما سره احسان وکړه او ما فرعون ته یاد کړه او ما له دې کور نه
وباسه ۱۵ څکه چه دَ عبرانیانو له زمکي نه غلا شوي یم او دلته کښې مِ 15
هم هیڅ کار نه دي کړي چه په قیدخانه کښې مِ واچوي ۱۶ او چه سردار دَ 16
نانبایانو ولیده چه ښه تعبیر دي یوسف ته یې وُوِ چه ما هم خوب ولید
چه کوره دري سپیني ټوکرۍ دَ سپینو ډوډو مِ په سر وي ۱۷ او له ټولو نه 17
په پاسنۍ ټوکرۍ کښې خوراک دَ فرعون وه دَ نانبایۍ له هنر نه او مرغانو
هغه له ټوکرۍ نه څما له سرَ یې خوړ ۱۸ او یوسف په ځواب کښې ووِ چه 18
تعبیر یې دا دي چه دري ټوکرۍ دا دري ورځې دِي ۱۹ دَ دري ورځو په مُدي 19
کښې به فرعون ستا سر له تنَ پورته کاندِ او تا به په لرګي زوړند کړِي
او مرغان به ستا غوښې له تا نه خوړِي ۲۰ او داسي وشوه په دریمه ورځ 20
چه دَ فرعون دَ پیدا کیدو ورځ وَه چه میلمستیا یې دَ خپلو ټولو مریونو
وکړه او سر دَ ساقیانو دَ سردار او سر دَ نانبایانو دَ سردار یې په خپلو
مریونو کښې پورته کړ ۲۱ او سردار دَ ساقیانو یې په منصب خپلې په ساقي 21
کړيِ بیا مقرّر کړ او کاسه یې دَ فرعون په لاس ورکړه ۲۲ لیکن سردار دَ 22

۲۲ نانباپانو ئي زوړند کړ لکه چه يوسف هغوي ته تعبير کړي وه ۲۳ ولي دَ ساقيانو
سردار يوسف ياد نه کړ بلکه هغه ئي هېر کړ ؂

# يو څلويښتم باب

۱ ۱ او پس له دوه کالو نه داسي وشوه چه فرعون خوب وليده چه گوره
۲ دَ سيند په غاړه ولاړ دي ۲ او گوره اوه غوا له سيند نه را ووتي په ليدو
۳ کښ ښې او څربي او په لوخو کښ څريدلي ۳ او گوره نوري اوه غوا پس له
هغو نه له سيند نه را ووتلي په ليدو کښ خرابي او خواري او نورو غواو ته
۴ دَ سيند په غاړي ودريدلي ۴ او هغه غواوخرابو په ليدو کښ او خوارو اوه غوا
۵ ښايسته په ليدو کښ او څربي وخوړلي او فرعون ويښ شه ۵ بيا اوده
شه او دوباره ئي خوب وليده چه گوره اوه وږي په يوه ډکي کښ وختل
۶ غټ او ښايسته ۶ او گوره اوه وږي نري او دَ نورخاته په باد توركي وهلي
۷ پس له هغو نه وټوكيدل ۷ او نرو وږو هغه اوه غټ ډک وږي ونغړدل
۸ نو فرعون ويښ شه او گوره خوب وه ۸ او داسي وشوه په سحر کښ چه دَ
هغه زړه خپه شه نو ئي ليږل او ټول جادوگران دَ مصر او حكيمان دَ
هغه ئي وبلل او فرعون خپل خوب هغوي ته بيان کړ او له هغوي نه دَ
۹ فرعون دَپارَ تعبير كوونكي نه وه ۹ او سردار دَ ساقيانو فرعون ته خبري
۱۰ وکړي و ئي ويل چه خپلي خطايئ نن زه يادوم ۱۰ چه فرعون په خپلو مريونو
باندِ قهرژن شه او زه ئي په كور دَ سردار دَ جلادانو کښ قيد کړي وم زه
۱۱ او دَ نانباپانو سردار هم ۱۱ او په يوه شپه کښ ما او هغه خوب وليده
۱۲ موږ هر يوه خوب وليد موافق له تعبيرَ دَهغه دَ خوب ۱۲ او له موږ سره
په هغه ځاي کښ عبري ځوان وه مري دَ سردار دَ جلاديانو او هغه ته
موږ بيان وکړ او هغه ځموږ خوبونَ ځموږ دَپارَ تعبير کړل هر يو له ئي
۱۳ موافق دَ هغه دَ خوب تعبير وکړ ۱۳ او لكه چه هغه موږ ته تعبيرکړي
وه هم هغه‌سي وشوه زه ئي خپل ځاي ته راوستم او هغه ئي زوړند کړ
۱۴ ۱۴ نو فرعون وليږه او يوسف ئي وباله او په هغه ئي له قيدخانې نه تلوار

وکړه نو سر ئې وخریه او خپلې جامې ئې بدلې کړلې او فرعون له را ننه وت-
۱۵ او فرعون یوسف ته ووې چه خوب مې لیدلی دی او د هغه تعبیر کوونکی ۱۵
څوک نشته او ما ستا په حق کښې اوریدلي دي چه ته خوب واوري نو تعبیر
ئې کولی شې ۱۶ او یوسف فرعون له ځواب ورکړ و ئې ویل چه ما له نشته ۱۶
الله د فرعون له په سلامتیا سره ځواب ورکړي ۱۷ او فرعون یوسف ته ووې ۱۷
چه په خپل خوب کښې گوره د سیند په غاړه ولاړ وم ۱۸ او گوره اوه غوا ۱۸
څربې او ښائیسته په صورت له سیند نه را ووتلې او په لوخو کښې څریدلې
۱۹ او گوره پس له هغو نه اوه نورې غوا ناکاره او بدشکلې او خوارې را ووتلې ۱۹
چه په ټوله زمکه د مصر کښې مې په داسې بدشکلۍ و نه لیدې ۲۰ او خوارو ۲۰
او بدشکلو غواوُ هغه وړومبۍ څربې اووه غوا وخوړلې ۲۱ او په کښې داخلې ۲۱
شولې او نه معلومیدې چه هغوې په دوې کښې داخلې شوې دي او په لیدو
کښې بدرنگې وې لکه په اوّل کښې نو ویښ شوم ۲۲ بیا مې په خوب کښې ۲۲
ولیدل چه گوره اوه ډک او ښائسته وږي په یو ډکي کښې ښکاره شول
۲۳ او گوره اوه وږي وچ نرې د نورختاته په باد توّرکي وهلي پس له هغوی ۲۳
نه وټوکیدل ۲۴ او نرو وږو ښایسته اووه وږي ونغړدل نو جادوگرانو ته ۲۴
مې ووې لیکن څوک نه وه چه زه ئې خبر کړې وي ۲۵ نو یوسف فرعون ته ووې ۲۵
چه د فرعون خوب یو دی الله فرعون خبر کړ په هغه څه چه کوي ۲۶ اوه ۲۶
ښائسته غوا هغه اوه کالَ دي او اوه ښایسته وږي هغه اوه کالَ دي
خوب یو دی ۲۷ او اوه خوارې بدشکلې غوا چه پس له هغوی نه ښکاره شوې ۲۷
هغه اوه کالَ دي او اوه نرې وږي د نورختاته په باد توّرکي وهلي هغه
اوه کالَ د قحط به وي ۲۸ هغه خبره چه مې فرعون ته ویلې دَه څه چه الله ۲۸
کوي فرعون ته ئې ښکاره کړي دي ۲۹ گوره اوه کالَ ډیر ودان د مصر په ټوله ۲۹
زمکه کښې راځي ۳۰ او پس له هغوي نه به اوه کالَ قحط شي چه ټوله ودانې ۳۰
به د مصر په زمکه کښې هیره کړې شي او قحط به زمکه هلاک کړي ۳۱ او ۳۱
ودانې به په زمکه کښې معلومه نه شي په سبب د قحط چه پس له هغه

۳۲ نه به وِي ځکه چه ډېره سختي به وِي ۳۲ او دوباره د خوب په فرعون باندِ دوه
ځله وشوه ځکه چه دَ الله له طرفٔ فرمان مقرر دي او الله به دا ژر وکاندِ
۳۳ ۳۳ نو اوس دِ فرعون هوښیار او دانا سړي وګوري او هغه دِ دَ مصر په
۳۴ زمکي مقرّر کړي ۳۴ فرعون دِ داسي وکړي او مختاران دِ په زمکه مقرّر کړي
۳۵ په اوهٔ کالونو دَ ودانۍ کښ دِ پنځمه بخره دَ مصر دَ زمکي واخلي ۳۵ او ټول
خوراک دِ دَدي ښایسته ؤ راتلونکو کلونو جمع کړي او غله دِ دَ فرعون دَ لاس
۳۶ لاندِ زخیره کړي او هغوي دِ خوراک په ښهرونو کښ وساتي ۳۶ نو دا خوراک
به زخیره شي مزکي له دَ اوهٔ کالونو دَ قحط دَپارَ چه دَ مصر په زمکه
۳۷ کښ به کیږي نو زمکه به له قحط نه ورانه نه شي ۳۷ او دا خبره دَ فرعون
۳۸ په نظر کښ او دَ هغه دَ ټولو خدمتګارانو په نظر کښ ښوره راغله ۳۸ نو
فرعون خپلو خدمتګارانو ته ووِ چه په مثل دَدي سړي به بیاموموڅه؟
۳۹ چه دَ الله روح په کښ دي ۳۹ نو فرعون یوسف ته ووِ هر کله چه الله
۴۰ تا ته دا ټول ښیلي دِي ستا په شان هوښیار دانا نشته ۴۰ ته به ځما په
کور شي او ځما ټول قام به ستا په خولي وِي او زه به فقط په تخت له تا
۴۱ نه لوي یم ۴۱ او فرعون یوسف ته ووِ چه ګوره ته مِ مقرّر کړي دَ مصر
۴۲ په ټولي مزکي باندِ ۴۲ او فرعون خپله ګوته له خپله لاسَ وویستله او
دَ یوسف په لاس ئي ورکړله او هم هغه ته ئي دَ ململ جامي واغوستلي
۴۳ او زرین طوق ئي دَ هغه په غاړه کښ واچوه ۴۳ او هغه ئي په خپل دویم
ګاډي سور کړ او دَ هغه دَ وړاندِ ئي منادِي وکړه چه سجده وکړئ او دَ
۴۴ مصر په ټولي مزکي ئي مقرر کړ ۴۴ او فرعون یوسف ته ووِ چه زه
فرعون یم او بې له تا نه به څوک دَ مصر په ټولي مزکي کښ لاس او پښه
۴۵ پورته نه کړي ۴۵ او فرعون یوسف له ضافِنَتْ فَعْنِیَحْ نوم کښیښود او آسِنَتْ
لور دَ پوطِي فِرَعْ دَ کاهن دَ اُوْن ئي په نکاح ورکړله او یوسف دَ مصر په
۴۶ زمکه ووت ۴۶ او یوسف په وقت دَ هغه دَ ودریدو کښ دَ وړاندِ دَ مصر
دَ بادشاه فرعون دېرش کلني وهٔ نو یوسف له وړاندِ دَ فرعون نه ووت دَ مصر

په ټوله زمکه کښې وګرزېده ۴۷ او په اوهٔ کالو دَ ودانۍ کښې زمکې په لپو ۴۷
لپو سره وکړه ۴۸ او ټول خوراک دَ اوهٔ کالو چه دَ مصر په زمکه کښې ۴۸
وُو جمع کړ او خوراک ئې په ښهرونو کښې واچوه او خوراک دَ پټو دَ ښهر
چه تر چاپېر وُو په کښې ئې واچوه ۴۹ او یوسف ډېره ډېره غله دَ درياب ۴۹
دَ شګو په شان جمع کړله څو چه شمار ئې پرېښود ځکه چه دَ هغې شمار نه
وه ۵۰ او مخوا له راتلو دَ قحط دَ کالو نه دَ یوسف دَپارَ دوه ځامن پیدا شول چه ۵۰
آسنث لور دَ پوطي فرع دَ کاهن دَ اُون هغوي دَ هغه دَپارَ راوړل ۵۱ او ۵۱
یوسف دَ مشر نوم مِنسَّه کښېښود ځکه چه و ئې ویل چه الله ځما ټولي
سختئ او ځما دَ پلار ټول کور له ما نه هېر کړ ۵۲ او دَ دویم نوم ئې اِفرَیم ۵۲
کښېښود ځکه چه الله زه دَ خپل مصیبت په زمکه کښې بارور کړم ۵۳ او ۵۳
اوه کالَ دَ ودانۍ چه دَ مصر په زمکه کښې وُو پوره شول ۵۴ او دَ قحط ۵۴
اوهٔ کالو په راتلو شروع وکړه لکه چه یوسف ویلي وُو او په ټولو زمکو
کښې قحط وه لیکن په ټوله زمکه دَ مصر کښې ډوډئ وه ۵۵ او چه دَ مصر ۵۵
ټوله زمکه قحط شه قام فرعون ته دَ ډوډئ دَپارَ فریاد وکړ نو فرعون ټولو
مصریانو ته ووِ چه یوسف له لاړ شئ او هر څه چه تاسو ته وائي وکړئ
۵۶ او قحط په مخ دَ ټولي زمکي وه او یوسف ټول څه چه په کښې خوراک ۵۶
وه پرانستل او په مصریانو ئې خرڅ کړل او قحط دَ مصر په زمکه کښې سخت
شه ۵۷ او دَ ټولي زمکي به دَ پیرودو دَپارَ مصر ته یوسف ځنه راتلل ۵۷
ځکه چه په ټولو زمکو کښې قحط سخت شه ❖

# دو څلوېښتم باب

۱ او هر کله چه یعقوب ولیدل چه په مصر کښې غله شته نو یعقوب خپلو ۱
ځامنو ته ووِ چه یو بل ته ولي ګورئ ۲ او و ئې ویل ګوره ما اورېدلي دي ۲
چه په مصر کښې غله شته هلته کوز شئ او له هلته نه ځمونږ دَپارَ
و پیرئ چه ژوندي پاتې شُو و نه مرو ۳ نو دَ یوسف لس وروڼه کوز ۳
شول دَ غلې پیرودلو دَپارَ له مصر نه ۴ لیکن یعقوب بنیامین دَ یوسف ۴

ورور له خپلو ورونړو سره و نه ليږه ځکه چه و ئي ويل چرِ نه وِي چه
٥ بلا ورپيښه شِي ٥ او بني اسرائيل په مينځ دَ راتلونکو کښ دَ پيرودو
٦ دَپارَ راغلل ځکه چه دَ کنعان په زمکه کښ قحط وه ٦ او يوسف په زمکه
بانبِ حاکم وه او خرڅوونکي په ټولو خلقو دَ زمکي هغه وه نو دَ يوسف ورونړه
٧ راغلل او په مخونو سره په زمکي سجده ئي وکړه ٧ او چه يوسف خپل
ورونړه وليدل و ئي پيژندل ليکن ځان ئي هغوي ته بيګانه کړ او له هغوي
سره ئي په سختئِ خبري وکړي او ورته ئي وويل چه له کومَ راغلي يئِ هغوي
٨ ووِ چه دَ کنعان له زمکي نه دَ خوراک دَ پيرودلو دَپارَ ٨ او يوسف خپل
٩ ورونړه وپيژندل ليکن هغوي هغه و نه پيژند ٩ او يوسف هغه خوبونَ
چه دَ هغو دَپارَ ئي ليدلي وُو په ياد کړل او ورته ئي وُوِ چه تاسو جاسوسان
١٠ يئِ او دَپارَ دَ ليدلو دَ خراب‌حالئِ دَ زمکي راغلي يئِ ١٠ هغوي ورته ووِ
چه نه اي ځما خاوندَ خو ستا غلامان دَ خوراک دَ پيرودلو دَپارَ راغلي
١١ دِي ١١ مونږ ټول دَ يو سړِي ځامن يُو او مونږ رښتيني يُو او ستا غلامان
١٢ جاسوسان نه دِي ١٢ نو ورته ئي ووِ چه نه دَپارَ دَ ليدو دَ خراب‌حالئِ
١٣ دَ زمکي راغلي يئِ ١٣ نو و ئي ويل چه ستا غلامان دولس ورونړه
دَ يو سړِي ځامن يُو دَ کنعان په زمکه کښ او کوره کشر نن ځمونږ له پلار
١٤ سره دي او يو نشته ١٤ او يوسف ورته ووِهم دغه ده چه تاسو ته مِ ووِ
١٥ وايم چه جاسوسان يئِ ١٥ په دي به وازمايلي شئِ دَ فرعون په ژوندون
١٦ تاسو به نه ووځئِ تر هغه پوري چه ستاسو کشر ورور دلته راشي ١٦ له
تاسو نه يو وليږئِ چه ستاسو ورور راولي او تاسو به قيد يئِ نو ستاسو
خبري به وازمايلي شي چه رښتيني په تاسو کښ شته څه؟ او که نه
١٧ وِي په ژوندون دَ فرعون چه تاسو جاسوسان يئِ ١٧ نو هغوي ئي دري ورځي په
١٨ قيدخانه کښ جمع کړل ١٨ او په دريمه ورځ يوسف ورته ووِ چه دا وکړي
١٩ او ژوندي پاتي شئِ چه زه له الله ويريږم ١٩ که تاسو رښتيني يئِ نو يو
دِ ستاسو له ورونړو نه ستاسو په قيدخانه کښ دِ قيد وِي او تاسو

لاړ شيْ غله دَ خپلو کورونو دَ قحطيْ دَپارَ يوسيْ ۲۰ او خپل کشر ورور ۲۰
ما ته راوليْ چه ستاسو خبره رښتني شي او ونه مريْ نو دا رنګ ئي
وکړل ۲۱ او يو بل ته ئي ووِ په رښتيا مونږ خپل ورور ته ګرم يُو چه مونږ ۲۱
تنګي دَ هغه دَ روح وليده چه له مونږَ ئي رحم وغوښت او مونږ وانه وريدله
په دي سبب دا تنګي په مونږ راغلي دَه ۲۲ او رُوبنِ هغوي له ځواب ورکړ و ۲۲
ئي ويل چه تاسو ته مِ ويلي نه وُو څه؟ وي مِ چه په هلک ظلم مه کويْ او
تاسو وانه وريدل نو ګوره خون ئي غوښتي شِي ۲۳ او دوي معلومه نه کړه ۲۳
چه يوسف پوهيږي ځکه چه دَ دوي تر مينځ ترجمان وه ۲۴ نو له دوي نه ۲۴
وګرزيد او وني ژړل او بيا دوي له را وګرزيد او له هغوي سره ئي خبري
وکړي او شمعون ئي تر ونيوه او دَ هغوي دَ وړاندِ ئي قيد کړ
۲۵ او يوسف حکم وکړ چه دَ هغوي لوښي دِ له غلي نه ډک کړي شِي ۲۵
او دَ هغوي روپيْ دِ دَ هر سړِي په غونډِي کښ بيرته کښيښودي شِي او دَ لاري
توښه دِ ور له ور کړي شِي نو په هغه رنګ ورسره وکړي شول ۲۶ او ۲۶
هغوي غله په خپلو خرو بارکړه او له هغه ځايَ روان شول ۲۷ او چه ۲۷
يو خپل غونډي پرانست چه خپل خرِه له په منزل کښ خوراک ورکړِي
نو هغه خپلي روپيِ وليدلي چه ګوره دَ هغه دَ غونډِي په خوله کښ وي
۲۸ او خپلو ورونړو ته ئي ووِ چه زما روپيْ بيرته راکړي شوي دِي او ګوره هم ۲۸
زما په غونډي کښ دِي نو زړونه ئي لاړل او په ويري سره يو بل
ته ئي وويل چه دا څه دِي چه الله سونږ سره وکړل ۲۹ نو خپل پلار يعقوب ۲۹
له دَ کنعان زمکي ته راغلل او په ټول څه چه ورپيښ شوِي وُو هغه ته ئي
بيان کړل و ئي ويل ۳۰ چه هغه سړي چه دَ زمکي حاکم وه سونږ ته په ۳۰
سختيِ ووِ او سونږ ئي دَ زمکي جاسوسان وشميرلو ۳۱ او هغه ته مونږَ ۳۱
ووِ چه مونږ رښتيني يُو جاسوسان نه يو ۳۲ مونږ دولس ورونړه دَ خپل ۳۲
پلار ځامن يُو يو نشته او کشر نن ورځ دَ کنعان په زمکه کښ زمونږ له پلار
سره دي ۳۳ او هغه سړِي دَ زمکي حاکم مونږ ته ووِ په دي به زه پوه ۳۳

شم چه تاسو رښتیني یئِ چه یو له خپلو ورونړو نه .ما څخه پریږدئِ او دَپارَ
۳۴ دَ قحطئِ دَ خپلو کورونو واخلئِ او لاړ شئِ ۳۴ او خپل کشر ورور ما له
راولئِ نو به پوه شم چه تاسو جاسوسان نه یئِ بلکه رښتیني یئِ نو ستاسو
ورور به تاسو له درکړم او په زمکي کښ به سوداګري کوئِ
۳۵ ۳۵ او داسي وشوه چه ئي خپل غونډِي تش کړل نو ګوره همیانئِ دَ
روپو دَ هر سړِي په خپل غونډِ کښ وه او چه همیانئِ دَ خپلو روپو هغوي او پلار
۳۶ ئي ولیدلي نو ووېرېدل ۳۶ نو یعقوب پلار ئي ورته ووِ چه زه تاسو له اولادَ خلاص
۳۷ کړم یوسف نشته او شمعون نشته او بنیامین تاسو به واخلئِ دا ټول په ما وشول ۳۷ روبین
خپل پلار ته خبري وکړي و ئي ویل چه که زه ئي تا له رانه ولم څما دواړه څامن ووژنه
۳۸ څما په لاس ئي وسپاره او زه به ئي تا له بیرته راولم ۳۸ او و ئي ویل چه
څما زوي به له تاسو سره نه کوزیږِي ځکه چه د هغه ورور مړ دي او
هغه یوازي پاتي دي که په لاري چه تاسو په کښ ځئِ څه بلا په
هغه پریوزِي نو څما زوړوالي به په غم سره عالمِ ارواح ته کوز کړئِ

## دري څلویښتم باب

۱ ۲ ۱ او په زمکه کښ سخت قحط وه ۲ او داسي وشوه چه غله ئي وخوړله چه
له مصر نه ئي راوړي وَه پلار ئي ورته ووِ بیرته لاړ شئِ او لږ خوراک مونږ
۳ له وپیرئِ ۳ نو یهوداه له هغه سره خبري وکړي و ئي ویل چه هغه
سړِي په مونږ تاکید کړي دي ویلي ئي دِي چه څما مخ به و نه وینئِ
۴ سوا له دي چه ستاسو ورور درسره وي ۴ که څمونږ ورور دِ له
۵ مونږ سره ولیږِ کوز به شو او تا له به خوراک وپیرو ۵ او که هغه دِ
و نه لیږِ نو نه کوزیږو ځکه چه هغه سړِي مونږ ته ووِ که ستاسو ورور
۶ درسره نه وِي نو څما مخ به و نه وینئِ ۶ او اسرائیل ووِ له ما سره ولي مو
۷ بدِي وکړله چه سړِي ته مو ووِ چه ستاسو بل ورور هم شته ۷ هغوي
ووِ چه هغه سړِي څمونږ او څمونږ دَ خپلوانو په تاکید پښتنه وکړه و ئي
ویل چه ستاسو پلار تر اوسَ پوري ژوندي دي څه ؟ او ستاسو ورور

شته څه؟ او مونږ هغه دَدي خبري په شان خبر کړ مونږ به تحقیق پوهیدي شو
۸ څه؟ چه هغه به ووایي چه خپل ورور راکوز کړئ ۸ او یهوداه خپل پلار اسرائیل ته
ووِ چه ځوان له ما سره ولیږه چه پاسو اوروان شو چه مونږ او ته او څمونږ وړوکي
۹ ژوندي پاتي شو او ونه مرو ۹ زه ئي ضامن یم څما له لاس ئي وغواړه که
ئي تا له رانه ولم او ستا په مخ کښ ئي حاضر نه کړم نو تا ته به همیشه
۱۰ خطاکار یم ۱۰ که مونږ ډیل کړي نه وي نو اوس دا دویم ځل به مونږ راجاروتلي
۱۱ وُو ۱۱ او دَ هغوي پلار اسرائیل ورته وویل که داسي وِي نو دا وکړئ چه له
غورو غورو دَ زمکي نه په خپلو لوښو کښ واخلئ او هدیه هغه سړي له
۱۲ لږ بلسان او لږ شات او مصالحه او مُر او پسته او بادام کوز کړئ ۱۲ او
دوچند روپئ په خپلو لاسونو کښ واخلئ او راجاروتلي روپئ ستاسو دَ غوندو
۱۳ په خولو کښ بیرته په خپلو لاسونو ئي یوسئ ګنړه هیر شوي ئي وِي ۱۳ نو خپل
۱۴ ورور واخلئ او پاځئ هغه سړي ته بیرته لاړ شئ ۱۴ او الله القادر به تاسو
له دَ وړاندِ دَ هغه سړي رحمت درکړي چه ستاسو بل ورور او بنیامین تاسو
له ازاد کړي او زه که بي اولادَ شم نو دِ بي اولادَ شم
۱۵ ۱۵ نو سړو هدیه واخستله او دوچند روپئ ئي په خپلو لاسونو
کښ او بنیامین ئي واخستل او پاځیدل او مصر ته کوز شول او دَ یوسف
۱۶ په مخ کښ ودریدل ۱۶ اوچه یوسف بنیامین له هغو سره ولید نو
دَ خپل کور مختار ته ئي ووِ چه دا سړي کور ته ننباسه او څه حلال
۱۷ کړه او تیار کړه چه غرمه به دا سړي له ما سره خوري ۱۷ نو هغه سړي
لکه چه یوسف حکم کړي وه وکړل او هغه سړي دَ یوسف کور ته دا
۱۸ سړي راوستل ۱۸ او هغه سړي چه دَ یوسف کور ته راوستلي شول
وویریدل او وئي ویل چه په سبب دَ روپو چه وړو نبئ څمونږ په غوندو
کښ راجاروتلي دِي مونږ راوستلي شوي یوچه په مونږ تور پوري
۱۹ کړي او په مونږ راشي او مونږ به مریي توب واخلي او څمونږ خرونه ۱۹ او
هغه سړي ته چه دَ یوسف دَکور وه وړاندِ شول او ور سره ئي دَ کور

۲۰ په دروازي کښ خبري وکړي ۲۰ او و ئې ويل چه اي خاونده ورونښي موږ
۲۱ دَ خوراک دَ پيرودو دَپاره راکوز شوِي وُو ۲۱ او داسي وشوه چه موږ منزل
له راغللو موږ خپل غونډِي پرانستل او گوره دَ هر سړِي روپۍِ دَ هغه
دَ غونډِي په خولي کښ وي څموږ روپيۍِ په خپل وزن او هغه موږ
۲۲ په خپلو لاسونو کښ بيرته راوړي دِي ۲۲ او نوري روپۍِ موږ دَ خوراک
دَ پيرودو دَپارَ په خپلو لاسونو کښ راکوز کړِي دِي نه پوهيږو چه چا
۲۳ څموږ په غونډو کښ څموږ روپۍِ کښيښودلي ۲۳ نو و ئې ويل چه تاسو
له دِ سلامتي وِي مه ويريږئِ ستاسو الله او ستاسو دَ پلار الله تاسو
ته خزانه ستاسو په غونډو کښ درکړي ده ستاسو روپۍِ ما ته ورسيدلي
۲۴ نو شمعون ئې هغوي له راوست ۲۴ او هغه سړِي دَ يوسف کور ته سړِي
راوستل او هغوي له ئې اوبه ورکړلي او خپلي پښي ووينځلي او گياه ئې دَ
۲۵ هغوي خرو له ورکړله ۲۵ او هديه ئې تياره کړه چه يوسف به غرمي له
راشِي چه ئې اوريدلِي وُو چه ډوډۍِ به هلته وخوري
۲۶ ۲۶ او چه يوسف کور ته راغي هغوي هديه چه دَ هغوي په لاس
۲۷ کښ وه وله کور ته راوړله او ور ته ئې په زمکه بانِد سجده وکړه ۲۷ او
دَ هغوي دَ سلامتيۍ پښتنه ئې وکړه او و ئې ويل چه ستاسو پلار هغه
سپين ږيري چه تاسو تِر ويلي وُو سلامت دي څه؟ تر اوسَ پوري ژوندي
۲۸ دي څه؟ ۲۸ نو و ئې ويل چه ستا مړي څموږ پلار سلامت دي او تر اوسه
۲۹ ژوندي دي او پړمخ ئې شول او سجده ئې وکړه ۲۹ او خپلي سترگي ئې
پورته کړلي خپل ورور بنيامين دَ خپلي مور زوي ئې وليده او و ئې ويل
چه ستاسو کشر ورور چه تاسو ما ته تِر ويلي وُو دا دي څه؟ او و ئې ويل
۳۰ چه اي څما زويَ الله دِ په تا بانِد رحم وکړِي ۳۰ او يوسف تلوار وکړه ځکه
چه کلمي ئې خپل ورور ته وَ ختکيدلي او دَ ژړا ځاي ئې ولټوه او کوټړۍِ
۳۱ ته ننوت او هلته ئې وژړل ۳۱ او خپل مخ ئې ووينځه او را ووت او صبر
۳۲ ئې وکړ و ئې ويل چه ډوډۍِ کيږدئِ ۳۲ او هغه ته بيله او هغوي ته بيله

او مصریانو ته چه ورسره ئي خوړل بیله کښېښودله ځکه چه مصریان له
۳۲ عبرانیانو سره ډوډئ خوړلي نه شوه چه دَ مصریانو دَپارَ مکروه وُو ۳۳ نو
دَ هغه په مخ کښ کښېناستل مشر موافق دَ خپلي مشرئ او کشري
۳۴ موافق دَ خپلي کشرئ او سړو يو تر بلَ تعجب کاوه ۳۴ او حصې ئي له خپلي
مخي نه هغوي له پورته کړلي او دَ بنیامین حصّه دَ هغو ټولو له حصّونو
پنځه څله ډېره وَه او وئي څښل او ورسره ئي ډېر وڅښل +

## څلور څلویښتم باب

۱ آنو هغه ته چه ئي په کور باندِ وه حکم وکړ وئي ویل چه دَدِي سړو
غونډِي له خوراک نه ډک کړه څو چه ئي پورته کولي شِي او دَ هر سړي روپئ
۲ دَ هغه دَ غونډِي په خوله کښ کښېږده ۲ او څما جام دَ سپینو زرو جام
دَ کشر دَ غونډِي په خوله کښ کېږده او دَ هغه دَ غلي روپئِ او په شان دَ
۳ ویلو دَ یوسف چه ویلي ئي وُو وئي کړل ۳ چه صباح رڼا شوه نو سړي
۴ رخصت کړي شول هغوئ او خره ئي ۴ چه له ښهرَ ووتل لا لرِي شوِي نه
وُو چه یوسف هغه ته چه ئي په کور وه وویل پاسه او هغو سړو پسي
ورشه او چه لاندِ ئي کړِي نو ورته ووایه چه تاسو ولي دَ نېکي په ځاي
۵ بدِي وکړه ۵ دا هغه نه دي څه؟ چه څما خاوند په کښ څښي او ور سره
۶ فال اچوِي ګناه کار شوئِ چه تاسو کړِي دِي ۶ نو ور ورسید او دا خبري
۷ ئي ور ته وویلي ۷ او هغوي ور ته وویل چه ولي څما خاوند داسي شان
۸ خبري وايِي الله دِ نه کا چه ستا غلامان دا شان کار وکړِي ۸ ګوره هغه
روپئِ چه دَ خپلو غونډو په خولي کښ مونږ بیاموندلِي دَ کنعان له زمکي
نه تا له مونږ بیرته راوړلي نو څه رنګ به ستا دَ خاوند له کور نه سپین
۹ زر یا سره زر پټوو ۹ هغه چه ورځنه بیاموندي شِي ستا له مریونو نه
۱۰ ودِ مرِي او مونږ دِ هم دَ خپل خاوند مریونه شُو ۱۰ نو وئي ویل چه ستاسو
دَ خبري په شان داسي به وشِي هغه چه ورځنه بیاموندي شِي څما
۱۱ مري به شِي او تاسو به بي تقصیرَ یئِ ۱۱ نو په تلوار سره هر یو خپل غونډِي

١١ په زمکه کوز کړ او هر يو خپل غونډي پرانت ١٢ او و ئي لټول او شروع ئي
له مشر نه او تمام ئي په کشر کړل او جام د بنيامين په غونډي کښ
١٣ بياموند شه ١٣ نو خپلي جامي ئي څيري کړلي او هر يو خپل خر بار کړ او
١٤ ښهر ته وجاروتل ١٤ او يهوداه او د هغه ورونړه د يوسف کور ته راغلل
١٥ او هغه لا هلته وه او د هغه په مخ کښ په زمکه پريوتل ١٥ او يوسف
هغوي ته ووِ چه دا څه کار دي چه تاسو کړي دي تاسو نه پوهيدلئِ څه؟
١٦ چه زما په شان سړي فال اچوي ١٦ يهوداه ووِ چه مونږ خپل خاوند ته
څه ووايو څه خبري وکړو او خان څه رنګ رښتيني کړو الله ستا د مريونو
ګناه معلومه کړه ګوره د خپل خاوند مريونه يُو مونږ او هم هغه چه په
١٧ لاس کښ ئي جام موندلي شوي دي ١٧ نو و ئي ويل چه الله دِ نه کا چه
زه داسي وکړم هغه سړي چه په لاس کښ ئي جام بياموند شه هغه
١٨ به زما مري وي او تاسو خپل پلار ته په سلامتئ سره وخيژئ ١٨ نو
يهوداه ورنزدي شه و ئي ويل اي زما خاوند ستا مريي د خپل خاوند
په غوږونو کښ خبره ووائي او ستا غضب ستا مري و نه سوزوي
١٩ ځکه چه ته د فرعون په شان ئي ١٩ زما خاوند له خپلو مريونو نه پښتنه
٢٠ وکړه و ئي ويل چه تاسو له پلار يا ورور شته دي څه؟ ٢٠ نو مونږ خپل
خاوند ته وويل چه زمونږ سپين ږيري پلار شته دي او د سپين ږيري
ځوي دي ورکي دي ورور ئي مړ دي او هغه خپلي مور له يوازي
٢١ باقي دي او پلار ئي پر مينه کوي ٢١ او تا خپلو مريونو ته ووِ چه
٢٢ هغه ما له راکوز کړئ چه په خپلو سترګو ئي ووينم ٢٢ او مونږ خپل خاوند
ته وويل چه هغه ځوان خپل پلار پرينبودي نه شي او که خپل پلار
٢٣ پريږدي نو پلار به ئي مړ شي ٢٣ او خپلو مريونو ته دِ ووِ که ستاسو کشر
٢٤ ورور له تاسو سره راکوز نه شي نو زما مخ به بيا نه وينئ ٢٤ نو
داسي وشوه چه مونږ ستا مريونه خپل پلار ته وختلو او مونږ د خپل
٢٥ خاوند خبري ور ته بيان کړي ٢٥ نو زمونږ پلار وويل چه بيرته شئ لږ

خوراک ځمونږ دَ پارَ وپیرئِ ۲۶ نو مونږ و ویل چه نه شو کوزیدلي که ځمونږ ۲۶
کشر ورور له مونږ سره وِي نو کوز به شو ځکه چه دَ هغه سړي
مخ نه شو لیدلي که ځمونږ کشر ورور راسره نه وِي ۲۷ او ځما پلار ۲۷
ستا مریي مونږ ته وویل تاسو پوهیږئِ چه ځما ښځي ځما دَ پارَ دوه ځامن راوړي
دِي ۲۸ او یو له ما نه لاړ او وَ مِ ویل چه هغه ضرور څیري شوي دي ۲۸
او تر اوسَ پوري مِ و نه لید ۲۹ او که دا هم له ما نه تاسو واخلئِ او ۲۹
څه ضرر ور ورسیږي نو ځما سپین ویښته به له غم سره عالمِ غیب ته
کوز کړئِ

۳۰ نو چه اوس زه خپل پلار ستا مریي له لاړ شم که هلک له ۳۰
مونږ سره نه وِي ځکه چه ژوندون ئي دَ هغه له ژوندون سره تړلي
دي ۳۱ او داسي به وشي چه ووینِي چه هلک نشته نو مړ به شي او ۳۱
ستا مریونه به سپین ویښته ستا دَ مریي ځمونږ دَ پلار له غم سره عالمِ
غیب ته کوز کړو ۳۲ ځکه چه ستا مریي دَ هلک ضامن شوي دي خپل ۳۲
پلارته مِ ویلي ئي دِي که هغه تاله رانه ولم نو همیشه به خپل پلار
ته ګناهګار یم ۳۳ نو اوس ستا مریي په ځاي دَ مریي غلام دَ خپل ۳۳
خاوند پاتي دِ شـــي او هلک له خپلو ورونړو سره دِ وخیژي ۳۴ ځکه ۳۴
چه هلک له ما سره نه وِي نو خپل پلار ته به څنګه خیژم هسي نه
وِي چه هغه بلا چه مِ په پلار واقع کیږي ووینم ✣

## پنځه څلویښتم باب

۱ او یوسف دَ ټولو ودریدونکیو دَ وړاندِ چه ور سره وُو ځان ټینګ نه ۱
کړي شه نو نغري ئي کړي چه ټول سړي ځما له وړاندِ نه وباسئِ او هیڅوک
ور سره ولاړ نه وه چه یوسف خپل ځان خپلو ورونړو ته وښایه ۲ او ۲
په لوړ آواز ئي وژړل نو مصریانو واوریدل او دَ فرعون کور واوریدل
۳ او یوسف خپلو ورونړو ته ووِ چه زه یوسف یم ځما پلار لا ژوندي ۳
دي او دَ هغه ورونړو هغه له جواب نه شه ورکولي ځکه چه هغوي دَ

۴ هغه له مخ نه وویریدل ۴ او یوسف خپلو ورونړو ته وویل چه ما ته
نزدې شئ که نه نو ورنزدې شول او وئې ویل چه زه یوسف ستاسو
۵ ورور یم هغه چه تاسو په مصر خرڅ کړې وه ۵ اوس مه خفه کیږئ
او مه قهریږئ چه زه تاسو دلته خرڅ کړم چه الله دَ ژوندون دَ ساتني
۶ دَپارَ زه ستاسو دَ مخ له وړاندې نه لیږلې یم ۶ ځکه چه دا اوه کاله شوي
دي چه په زمکه کښ قحط دي او پنځه کالونه نور هم چه کَرل او ریبل
۷ به نه وي ۷ او الله زه ستاسو دَ مخ دَ وړاندې لیږلې یم چه ستاسو دَپارَ
۸ په زمکه کښ بقا کیږدم او تاسو له په لوي خلاصې ژوندون درکړم ۸ نو
اوس چه زه دلته تاسو لیږلې یم تاسو نه ئې بلکه الله دي او هغه
زه فرعون له پلار کړم او دَ ټول کور ئې حاکم او دَ مصر په ټوله زمکه
۹ مسلّط کړم ۹ زر شئ او خما پلار ته وخیژئ او ورته ووایئ چه ستا
زوي یوسف داسې وائي چه الله زه دَ ټول مصر حاکم کړې یم ما ته را
۱۰ کوز شه مه ودریږه ۱۰ او ته به دَ جوشن په زمکه کښ اوسیږې او ما
ته به نزدې یې ته او ستا ځامن او ستا دَ ځامنو ځامن او ستا ګلې
۱۱ او ستا غوا او ټول څه چه ستا وي ۱۱ او تا به هلته وپالم ځکه چه
قحط لا پنځه کاله پاتې دي چرِ نه وې چه ته او ستا کور او ټول څه چه
۱۲ تا له دي خوار شئ ۱۲ او ګوره ستاسو سترګې او خما دَ ورور بنیامین سترګې
۱۳ وینې چه خما خوله ده چه له تاسو سره خبرې کوي ۱۳ او خما پلار ته خما
ټول لویي په مصر کښ او هر څه چه تاسو لیدلي دي بیان کړئ او زر
۱۴ کړئ او خما پلار دلته راکوز کړئ ۱۴ نو خپل ورور بنیامین ته ترغاړه وت
۱۵ او وئې ژړل او بنیامین ترغاړه ئې وژړل ۱۵ او خپل ټول ورونړه ئې
ښکل کړل او پرِ وئې ژړل او پس له هغه خپلو ورونړو ور سره خبرې
۱۶ وکړې ۱۶ نو دا خبر دَ فرعون په کور کښ واوریدې شه وویلې شول چه دَ
یوسف ورونړه راغلي دي او دَ فرعون په سترګه کښ او دَ هغه دَ مریونو
۱۷ په سترګو کښ ښه راغله ۱۷ او فرعون یوسف ته وویل چه خپلو ورونړو ته

ووایه چه دا رنګ وکړئ خپل څاروي بار کړئ او روان شئ دَ کنعان زمکې
ته لاړ شئ ۱۸ او خپل پلار او خپل کورونه واخلئ ما له راشئ او غوره دَ ۱۸
مصر دَ زمکې تاسو له به درکړم چه څربښت دَ زمکې وخورئ ۱۹ نو ته حکم ۱۹
کړې شوي یې دا وکړئ دَ مصر له زمکې نه دَ خپلو وړوکو او دَ خپلو ښځو
دَپارَ ګاډې واخلئ او خپل پلار سور کړئ او راشئ ۲۰ او په خپلو اسبابو ۲۰
دِ ستاسو سترګې نه غمجنې کیږي چه غوره دَ مصر دَ ټولې زمکې ستاسو
دي ۲۱ او بني اسرائیلو داسې وکړل او یوسف دَ فرعون دَ حکم په شان ۲۱
ګاډې ورله ورکړل او دَ لارې توښه یې وله ورکړله ۲۲ او له هغو نه هر ۲۲
یو له یې جوړه جامې ورکړلې او بنیامین له یې درې سوَ روپئ او پنځه
جوړه جامې ورکړلې ۲۳ او خپل پلار له یې داسې ولیږل لس خره بار کړي ۲۳
شوي دَ مصر په غورو څیزونو او لس خرې بار کړي شوي په غله او په
ډوډئ او په خوراک دَ خپل پلار له لارې دَپارَ ۲۴ نو خپل ورونړه یې ۲۴
رخصت کړل نو روان شول او ورته یې وویل چه په لاره کښې جګړه
مه کوئ ۲۵ او له مصر نه وختل او خپل پلار یعقوب له دَ کنعان ۲۵
زمکې ته راغلل ۲۶ او هغه یې خبر کړ و یې ویل چه یوسف تر اوسَ ۲۶
پورې ژوندې دي او دَ مصر په ټولې زمکې مسلط دي نو زړه یې ولوید
ځکه چه په هغوي یې باور و نه کړ ۲۷ او ورته یې وویل ټولې خبرې ۲۷
دَ یوسف چه یې ورته ویلې وې او چه یې ګاډې ولیدل چه یوسف
دَ هغه دَ راوستو دَپارَ لیږلې وُو دَ هغوي دَ پلار یعقوب زړه ژوندې
شه ۲۸ نو اسرائیل ووِ بس دَه چه ځما زوي یوسف لا ژوندي دي ۲۸
زه به لاړ شم او و به یې ګورم پخوا له هغه چه زه مړ شم +

## شپږ څلوېښتم باب

۱ او اسرائیل کوچ وکړ او ټول څه چه ورسره وُو او بیرِشبع ته ۱
راغې او قربانئ یې دَ خپل پلار اسحاق الله له ذبح کړلې ۲ نو الله اسرائیل ۲
سره دَ شپې په خوبونو کښې خبرې وکړې او وې ویل اې یعقوبَ یعقوبَ هغه

۳ ووِ دایم ۳ نو وئې ویل زه یم الله ستا دَ پلار له کوزیدو نه مصر ته
۴ مه ویرېږه چه زه به هلته تا لوي قوم کړمه ۴ زه به در سره مصر ته کوز
شم او هم به دِ وخیژوم او یوسف به خپل لاس ستا په سترګو کیږدي
۵ ۵ نو یعقوب له بئرِ شبع نه پاڅیده او بني اسرائیلو خپل پلار یعقوب
او خپل ووړوکي او خپلي ښځي په ګاډو کښ چه فرعون دَ هغه دَ راوستو
۶ دَپارَ لیږلي وُو سواره کړل ۶ او خپل حاصلات او خپل مال چه ئې
دَکنعان په زمکه کښ حاصل کړي وُو واخستل او مصر ته راغلل
۷ یعقوب او ټول نسل ور سره ۷ او خپل ځامن او دَ خپلو ځامنو ځامن
ورسره او خپلي لونړه او دَ خپلو ځامنو لونړه ئې او خپل ټول نسل
۸ ئې ځان سره مصر ته راوستل ۸ او دَ بني اسرائیلو نومونَ چه مصر
ته راغلل دا دِي یعقوب او دَ هغه ځامن مشر زوي دَ یعقوب رؤبین
۹ ۱۰ ۹ او دَ رؤبین ځامن حنوک او فلّو او حصرون او کرمي وُو ۱۰ او دَ شمعون
ځامن یموئیل او یامین او اوهد او یاکین او صوحر او شاؤل دَکنعانیي
۱۱ ۱۲ زوي ۱۱ او دَ لاوِي ځامن جیرشون او قهات او مراري ۱۲ او دَ یهوداه
ځامن عیر او اونان او شیلاه او فرص اوزارح او عیر او اونان دَ
کنعان په زمکه کښ ومړل او دَ فرص ځامن حصرون او حمول وُو-
۱۳ ۱۴ ۱۳ او دَ یسّاکار ځامن تولاع او فوّاه او ایوب او شِمرون ۱۴ او دَ زبلون
۱۵ ځامن سرد او ایلون او یحلئیل ۱۵ دوي دَ لیاه ځامن دِي چه هغوي ئې
په پدنِ ارام کښ له خپلي لور دیناه سره دَ یعقوب دَپارَ راوړل ټول
۱۶ نفسونَ دَ هغه دَ ځامنو او دَ لونړو ئې دري دیرش وُو ۱۶ او دَجاد ځامن
۱۷ صفیون او حجّي شوني او اصبون عیري او ارودي او ارئیلي ۱۷ او دَ آشیر
ځامن یمناه او یشواه او یشوِي او بریعاه او دَ هغوي خور سرح او دَ
۱۸ بریعاه ځامن حبر او ملکي ایل ۱۸ دوي دِي دَ زلپاه ځامن چه لابان خپلي
لورِ لیاه له هغه ورکړي وَه چه دَ یعقوب دَپارَ ئې دوي راوړل شپاړس
۱۹ ۲۰ تنَ ۱۹ ځامن دَ راحیل دَ یعقوب دَ ښځي یوسف او بنیامین ۲۰ او یوسف له

دَ مصر په زمکه کښ مِنَسه او اَفرِیم پیدا شول چه هغوي اَسَنَتْ لور دَ
پوطي فِرع كاهن دَ اون دَ هغه دَپارَ راوړل ۲۱ او دَ بنیامین ځامن بلع او ۲۱
بَکَرَ او اشبیل جیراه او نعمان ایحي اوروش مَپّیم اوحُپّیم او ارد ۲۲ دوي ۲۲
دِي دَراحیل ځامن چه دَ یعقوب دَپارَ پیدا شول ټول نفسونَ څوارلس
وُو ۲۳ او دَدان زوي حشیم وه ۲۴ او دَ نفتالي ځامن یحصیل او جوني ۲۳ ۲۴
او یِصر او شِلّیم ۲۵ دوي دِي دَ بلهاه ځامن چه لابان خپلي لور راحیل له ۲۵
ورکړله چه هغوي ئي دَ یعقوب دَپارَ راوړل ټول نفسونَ اوه وُو ۲۶ ټول ۲۶
نفسونَ چه له یعقوب سره مصر ته راغلل چه دَ هغه له پښت نه و وتل
بي دَ یعقوب دَ ځامنو له ښځو نه ټول نفسونَ شپږ شپیته وُو ۲۷ او دَ ۲۷
یوسف ځامن چه دَ هغه دَپارَ په مصر کښ پیدا شول دوه تنَ ټول
نفسونَ دَ یعقوب دَ کور چه مصر ته راغلي وُو اویا وُو
۲۸ او یهوداه ئي له ځان نه وړاندِ یوسف له ولیږه چه هغه ته دَ ۲۸
جوشَن لار وښیي او دَ جوشن زمکي ته راغلل ۲۹ او یوسف خپل گاډي وتاړه ۲۹
او دَ خپل پلار اسرائیل مخي له جوشن له وخوت او ځان ئي ورته وښایه
او ور تر غاړه وت او تر ډېرو پوري ئي دَ هغه تر غاړي وژړل ۳۰ او اسرائیل ۳۰
یوسف ته وویل اوس دِ ومرم بس له دي چه ستا مخ مِ ولیده چه تر
اوسَ ته ژوندي یې ۳۱ او یوسف خپلو ورونړو ته او دَ خپل پلار کور ته ۳۱
وویل چه و به خیژم او فرعون به خبر کړم او ور ته به ووایم چه ځما
ورونړه او ځما دَ پلار کور چه دَ کنعان په زمکه کښ وُو ما له راغلي دِي
۳۲ او دا سړِي شپانه دِي ځکه چه دَ مال خاوندان دِي او گډي او غوا ۳۲
او ټول څه چه ئي دِي راوستلي ئي دِي ۳۳ او داسي به وشِي چه فرعون ۳۳
تاسو و بولِي او ووايي چه ستاسو څه کسب دِي ۳۴ نو ووايئِ چه ستا ۳۴
مریونو دَ خپل هلکوالِي نه تر اوسَ مونږ او هم ځمونږ پلارونه دَ مال خاوندان
یُو چه دَ جوشن په زمکه کښ اوسېدونکي شئِ ځکه چه هر شپون
مصریانو ته مکروه دي +

# اوه څلویښتم باب

۱ آ نو یوسف راغي او فرعون ته ئي خبر کړ و ئې ویل چه څما پلار او څما
ورونړه او کندوکونه ئي او غوا ئې او ټول څه چه ئي دي د کنعان له
۲ زمکي نه راغلل او کوره دوي د جوشن په زمکه کښ دي ۲ او یخه تن له
۳ ټولو ورونړو نه ئي واخستل او هغوي ئي د فرعون د وړاندې ودرول ۳ او
فرعون د هغه ورونړو ته وویل چه ستاسو څه کسب دي او هغوي
فرعون ته وویل چه ستا مريونه شپانه دي مونږ او هم څمونږ پلرونَ
۴ ۴ او فرعون ته ئي وویل مونږ راغلي یُو چه مسافري وکړو په زمکي کښ
چه ستا د غلامانو د کندوکونو دپاره ورشو نشته څکه چه د کنعان
په زمکه کښ سخت قحط دي اوس ستا مريونه دِ د جوشن په زمکه کښ
۵ استوږي شي —— ۵ او فرعون یوسف ته خبري وکړي و ئي ویل چه ستا
۶ پلار او ستا ورونړه تا له راغلي دِي ۶ د مصر زمکه ستا د وړاندِ ده په
غوره زمکه کښ خپل پلار او خپل ورونړه او وسوه د جوشن په زمکه کښ
استوږي دِ شي او که تا ته معلومه ده چه په دوي کښ لایق سړي وِي
۷ هغوي څما د مال مختاران کړه ۷ نو یوسف خپل پلار یعقوب ننه یست او
۸ د فرعون د وړاندِ ودروه او یعقوب فرعون له برکت ورکړ ۸ او فرعون
۹ یعقوب ته ووِ ستا د ژوندون کالونه څو دِي ۹ او یعقوب فرعون ته ووِ
چه ورځي د کالونو څما د مسافرئ دیرش د پاسه سل کال دِي څما د ژوندون
د کلونو ورځي لږي او بدي دِي او تر ورځو د کلونو د ژوندون څما د پلرونو
۱۰ د هغوي د مسافري ورځو ته رسیدلي نه دِي ۱۰ او یعقوب فرعون ته برکت
۱۱ ورکړ او د فرعون له وړاندِ نه ووت ۱۱ نو یوسف خپل پلار او خپل ورونړه
وُاوسول او دفتر ئي د مصر په زمکه کښ په غوره زمکه کښ د رَعمسیس
۱۲ په زمکه کښ لکه چه فرعون حکم کړي وه ورته ورکړ ۱۲ او یوسف خپل
پلار او خپل ورونړه او ټول کور د خپل پلار موافق د هلکانو به دوډئ
وپالل

۱۳ او په ټولي زمکي کښ ډوډئِ نه وَه ځکه چه قحط ډېر سخت وه ۱۳
او دَ مصر زمکه او دَ کنعان زمکه له قحط نه ورانه شوه ۱۴ او يوسف ۱۴
ټولي روپئِ چه دَ مصر په زمکه کښ او دَ کنعان په زمکه کښ موندلي
شوي وي په غلي چه ئي پيرودلي وه جمع کړلي او يوسف هغه روپئِ دَ
فرعون کور ته راوړلي ۱۵ او چه روپئِ دَ مصر له زمکي او دَ کنعان له زمکي ۱۵
نه تمامي شولي ټول مصريان يوسف له راغلل و ئي ويل چه مونږ له
ډوډئِ راکړه ولي به ستا دَ وړاندِ مړو چه روپئِ تمامي شولي ۱۶ او يوسف ۱۶
وويل تاسو خپل مال راکړئِ ستاسو په مال به تاسو له درکړم که روپئِ
تمامي شوي ۱۷ نو خپل مال ئي يوسف له راوست او يوسف دَ اسونو او دَ ۱۷
کنډکونو او دَ ځاروو او دَ خرو په بدل ډوډئِ ورکړه هغه
کال دَ هغو دَ ټول مال په بدل په ډوډئِ سره ئي وپالل ۱۸ او چه ۱۸
هغه کال پوره شه نو په دويم کال کښ وله راغلل ور ته ئي وويل چه
له خپل خاوند نه نه پټوو چه ځمونږ روپئِ تمامي شولي او مال د ځارويو
ځمونږ خاوند ځنه دي او ځمونږ دَ خاوند دَ وړاندِ باقي نه دي پاتې شوي
سوا ځمونږ له جثو نه او ځمونږ له زمکي نه ۱۹ ولي به ستا په نظر کښ ۱۹
مونږ او ځمونږ زمکه هم ومرو نو مونږ او ځمونږ زمکه په ډوډئِ وپيره
نو مونږ او ځمونږ زمکه به دَ فرعون مريونه شو او تخم راکړه چه ژوندي
پاتې شو او و نه مرو او زمکه ورانه پاتې نه شي ۲۰ نو يوسف دَ مصر ټوله ۲۰
زمکه فرعون له وپيروده ځکه چه مصريانو هر يو خپل پټي خرڅ کړ چه
قحط په دوي سخت شه او زمکه دَ فرعون شوله ۲۱ او خلق ئي ښهرونو ۲۱
له دَ مصر دَ حد له يو سرَ تر بل سرَ ئي وليږل ۲۲ ولي دَ کاهنانو زمکه ۲۲
ئي و نه پيروده ځکه چه دَ فرعون له طرفَ سيرئِ وه او خوړله ئي خپله
سيرئِ چه فرعون هغوي له ورکړي وَه له دي سببَ ئي خپله زمکه خرڅه
نه کړله ۲۳ او يوسف خلقو ته وويل چه گوره نن ورځ مِ تاسو او ستاسو ۲۳
زمکه دَ فرعون دَ پارَ و پيروده گوره دا ستاسو دَ پارَ تخم دي نو زمکه وکرئِ۔

۲۴ ۲۴ او له حاصلاتو چه وشي تاسو به پنځمه فرعون له ورکړئ او څلورحصي
به ستاسو شي پښي له تخم تاسو له دَخوراک دَپارَ او هغو له چه
۲۵ ستاسو به کوروںو کښ دِي او ستاسو دَ وړوکو دَپارَ خوراک ۲۵ او هغوي
ووېل چه موږ دِ ژوندِي کړو په نظر دَ خپل خاوند کښ مهربانۍ
۲۶ دِ بیامومو نو موږ به دَ فرعون مریونه شو ۲۶ او یوسف تر نن ورځي پوري
دَ مصر په زمکه ئې حق مقرّر کړ چه پنځمه فرعون له دِ شي ولي دَ
۲۷ کاهنانو زمکه پراځي دَ هغو فرعون له به نه شي ۲۷ او اسرائیل دَمصر په
زمکه کښ دَ جوشن په زمکه کښ اوسیدونکي شه او په کښ ئې دفتر
کړ او بارَور او ډیر زیات شول
۲۸ ۲۸ او یعقوب دَ مصر په زمکه کښ اوولس کالَ ژوندون وکړ
او ورځي دَ یعقوب کالونه دَ هغه دَ ژوندون یو سل اوه څلوښت کالَ
۲۹ وُو ۲۹ او چه دَ اسرائیل دَمرګ ورځي نزدې شولي خپل زوي یوسف ئې
وباله او ورته ئې ووېل که ما ستا په نظر کښ مهربانۍ بیاموندلي ده
نو خپل لاس څما له ورون نه بنکته کیږده او احسان او امانت له
۳۰ ما سره وکړه ما په مصر کښ مه خښنوه ۳۰ له خپلو پلرونو سره به
زه څملم او ما به له مصر نه یوسي او ما به دَ هغوي په مقبرې
۳۱ کښ خښ کړي نو وئې وېل چه ستا دَ ویلو په شان به وکړم ۳۱
او وئې وېل چه ما ته سوګند وخوره نو دَ هغه دَپارَ سوګند ئې
وخوړ او اسرائیل دَ پالنګ په سر سجده وکړه +

## اته څلویښتم باب

۱ ۱ او داسي وشوه پس له دي خبرو چه یوسف ته ووېلي شول چه ګوره
ستا پلار ناجوړه دي او هغه خپل دواړه زامن منسّه او افرئِم څان
۲ سره واخستل ۲ او یعقوب خبر کړي شه او ور ته ووېلي شول چه
ګوره ستا زوي یوسف تا له راځي او اسرائیل څان مضبوط کړ او په
۳ پالنګ کښیناست ۳ او یعقوب یوسف ته ووېل چه الله القادر په لُوز

کښ دَ کنعان په زمکي کښ ماته ښکاره شه او زه ئي مبارک کړم ۴ او ۴
ماته ئي وويل چه گوره تا به بارور او تا به ډير کړم او تا به تولی کړم
له استونو نه او دا زمکه به ستا اولاد له پس له تا نه دَ ابدي دفتر
دَپارَ درکړم ۵ نو اوس ستا دوه ځامن چه پيدا شوي دي تا له دَ مصر ۵
په زمکي کښ بخوا له هغه نه چه زه تا له مصر ته راغلم خما دَپارَ دي
افريم او منسّه دَ رؤبين او دَ شمعون په شان به خما دَپارَ شي ۶ او ستا ۶
اولاد چه پس له هغوي نه ستا دَپارَ به شي او دَ خپلو وروڼو په نوم به
وبللي شي دَ هغوي په دفتر کښ ۷ او چه زه له پدان نه دَ کنعان په زمکه ۷
کښ راغلم راحيل ماځخه مړه شوه په لاره چه څه قدر پاتي شوي وه
دَ راتلو افرات له نو هلته مِ دَ افرات په لاري (چه بيتِ لحم دي) خښه
کړله ۸ او اسرائيل دَ يوسف ځامن وليدل و ئي ويل چه دا څوک دي - ۸
۹ يوسف خپل پلار ته ووِ چه دوي خما ځامن دي چه الله ما له دلته ۹
راکړي دي و ئي ويل راۍي ولـه چـه برکت ورکړم ۱۰ او دَ اسرائيل ۱۰
سترگي له زوړوالي نه دربني شوي وي ليدلی ئي نه شول نو هغوي ئي ور نزدي
کړل او هغوي ئي ښکل کړل او ورتر غاړه وت ۱۱ او اسرائيل يوسف ته وويل ۱۱
چه گمان مِ نه کاوه چه ستا مخ به ووينم او گوره الله ستا نسل هم
ماته ښکاره کړ ۱۲ او يوسف هغوي دَ هغه له زنگنونو نه وويستل او ۱۲
دَ هغه دَ وړاندِ ئي سجده وکړله ۱۳ او يوسف دواړه واخستل افريم ۱۳
خپل ښي لاس ته برابر دَ کيڼ لاس دَ اسرائيل او منسّه ئي خپل کيڼ
لاس ته برابر دَ ښي لاس دَ اسرائيل او هغه ته ئي نزدي کړل ۱۴ او اسرائيل ۱۴
خپل ښي لاس اوږد کړ او هغه ئي په سر دَ افريم کشر زوي او خپل کيڼ
لاس ئي دَ منسّه په سر خپل لاسونَ ئي په پوهه سره کښېښودل څکه
چه منسّه مشر وه ۱۵ او يوسف له ئي برکت ورکړ و ئي ويل چه هغه ۱۵
الله چه دَ هغه دَ وړاندِ ابراهام او اسحاق خما پلرونو لاړل هغه الله چه
زه ئي خما له موجود کيدو نه تر دي ورځي پوري وپالَلم ۱۶ هغه فرښته چه ۱۶

نه يي له هري بلا نه خلاص کړم دواړو ځوانانو له دِ برکت ورکړي او ځما نوم
او ځما دَ پلرونو ابراهام او اسحاق نوم دِ په هغوي وبللي شي او دَ زمکي
۱۷ په مينځ کښ دِ په زياتي زيات شي ۱۷ او چه يوسف وليده چه پلار يي
خپل ښي لاس دَ افريم په سر کښيښود دَ هغه په نظر کښ ناخوښه
راغلله نو دَ خپل پلار لاس يي ونيوه چه دَ افريم له سره يي دَ منسّه
۱۸ سر ته وګرزوي ۱۸ او يوسف خپل پلار ته وويل چه اي پلارَ دا رنګ دِ
۱۹ نه کيږي ځکه چه مشر دا دي خپل ښي لاس دَ هغه په سر کيږده ۱۹ او دَ
هغه پلار انکار وکړ و يي ويل چه اي ځما زويه پوه شوم پوه شوم هغه
به هم دَ قوم دَپارَ شي او هغه به هم لوي شي ليکن دَ هغه کشر ورور
۲۰ له هغه نه به لوي وي او دَ هغه نسل به دَ قومونو ټولي وي ۲۰ او په هغه
ورځ کښ يي هغوي له برکت ورکړ وي ويل چه په تا به اسرائيل برکت کوي
وايي چه الله دِ تا په مثل دَ افريم. او په مثل دَ منسّه کړي او افريم
۲۱ يي په منسّه باندِ وړوښي کړ ۲۱ او اسرائيل يوسف ته ووِ چه ګوره
زه مرم او الله به تاسو سره وي او تاسو به ستاسو دَ پلرونو زمکي ته بيا
۲۲ بوزي ۲۲ او ما تا له يوه حصّه ستا له ورونړو نه زياته کړه چه ما هغه
په خپلي تُوري او په خپلي ليندي دَ اموريانو له لاسَ اخستي وه ✤

## ته څلويښتم باب

۱ ۱ او يعقوب خپل ځامن وبلل و يي ويل چه جمع شيِ چه هغه چه
تاسو ته به وروستو ورځو کښ واقع کيږي تاسو خبر کړم

۲ ۲ جمعَ شيِ او واوريِ اي بنِي يعقوبو
او خپل پلار اسرائيل ته غوږ کيږديِ

۳ ۳ رؤبينَ ته ځما مشريِ يي او ځما قوت او ابتدا ځما دَ قدرت
فضيلت دَ لوني او فضيلت دَ غلبي

۴ ۴ خو تکيدونکي لکه اوبه تفضيل به نه مومي
ځکه چه دَ خپل پلار په کټ وختلي

هغه وقت تا ناپاک کړ هغه ځما په پالنګ وخوت
٥ شمعون او لاوِي ورونړه دِي ٥
دَ ظلم وسلي دَ هغوي تُوري دِي
٦ اي ځما ځانَ دَ هغوی په مصلحت کښ مه داخليږه ٦
او اي ځما جلالَ دَ هغوي په جرګي کښ مه يوځاي کيږه
ځکه چه هغو په خپل غضب کښ سړي ووژلل
او دَ هغوي په خپل شوخي سره ئي غوايه ګډ کړ
٧ ملعون دِ شِي دَ هغوي غضب ځکه چه تُند وه ٧
او دَ هغوي قهر ځکه چه سخت وه
هغوي به په يعقوب کښ جدا کړم
او په اسرائيل کښ به ئي خواره کړم
٨ يهوداه ته هغه يي چه ورونړه به ستا مدح وکړِي ٨
ستا لاس به ستا دَ دشمنانو په څټ وِي
ستا دَ پلار ځامن به تا ته سجدي کوِي
٩ يهوداه دَ زمري بچي دي ٩
اي ځما زويَ له ښکارَ ته وختلي
تيټ شوي دَ زمري په شان غلي ناست
او دَ زمريِ په شان څوک دي چه هغه پاڅوِي
١٠ عصا به له يهوداه نه لري نه شِي ١٠
او دَ حاکم همسا له مينځ دَ هغه دَ پښو نه
تر هغه چه شيلوه راشِي
چه وله تابعداري دَ قامونو به وِي
١١ خپله خره به تاک پوري تړونکي ١١
او دَ خپل خر کوچانړي په غوره دَ تاکو پوري
خپلي جامي په شيرِه ووينځه

او خپل زروكي دَ انگورو په وينو
۱۲ ۱۲ دَ هغه سترگي به له شيرو نه سري شي
او دَ هغه غاښونَ به له پيو نه سپين شي
۱۳ ۱۳ زبولون به دَ درياب په غاړه اوسيږي
او هغه به دَ کشتو بندر وِي
او حدونَ ئي به تر صيدونَ پوري
۱۴ ۱۴ يساكار تکړه خر دي
چه په منځ دَ شپه لونو کښ پنډيږي
۱۵ ۱۵ او دَ آرام ځاي ئي وليد چه ښه دي
او زمكه چه خوشنما ده
او خپله اوږه ئي دَ باريدلو دَ پارَ ټيټه کړله
او مال ئي له غلام شه
۱۶ ۱۶ دان به په خپل قام باندِ عدالت کوِي
په مثل دَ يو دَ فرقو دَ اسرائيل
۱۷ ۱۷ دان به په لاره کښ مار وِي
او په لاره کښ به ښامار وِي
چه پوندي دَ اسونو چيچي
چه سور ئي په ورستو پريوزي
۱۸ ۱۸ اي خداوند ستا دَ نجات منتظر يم
۱۹ ۱۹ جاد فوځ به ئي وربروي
ولي دي به دَ هغوي پوندي وربروي
۲۰ ۲۰ له آشير نه دَ هغه ډوډئ به خربه وِي
چه بادشاهي لِذّتونه به ورکوِي
۲۱ ۲۱ نفتالي خلاصه شوي هوسئ ده
چه خوږي خبري کوِي

۲۲ يوسف بارَوره ساڼکه ده ۲۲
بارَوره ساڼکه په چينې څنګه
ښاخونه ئې په ديوال ختلي دي
۲۳ دَ غشو خاوندانو هغه ترخه کړله ۲۳
او وئي ويشتله او وربانډِ ئې ستم وکړ
۲۴ ليکن دَ هغه لينده په قوّت سره پاتې شوله ۲۴
او مټونه دَ لاسونو ئې مضبوط شول
له لاسونو دَ القادر دَ يعقوب
(له هلته نه شپون او کاڼړي دَ اسرائيل دي)
۲۵ ستا دَ پلار له الله نه چه ستا مدد به کړي ۲۵
او له القادر نه چه تا به مبارک کړي
برکتونَ دَ آسمان له پورته نه
برکتونَ دَ ژوري لاندِ کښيناستونکي
برکتونَ دَ تيو او دَ رحِم
۲۶ برکتونَ ستا دَ پلار ۲۶
څما دَ نيکونو په برکتونو ئې غلبه کړې ده
تر لري حدونو دَ ابدي غرونو
هغه به دَ يوسف په سر بانډِ وِي
او په ککړئِ دَ سر دَ هغه چه دَ خپلو وروڼو نه بيل شوي دي
۲۷ بنيامين څيرونکي شرمخ دي ۲۷
په سحر کښ ښکار خوري
او ماښام لوټ ويشي
۲۸ دا ټول دولس فرقي دَ اسرائيل دِي او دا هغه چه دَ هغوي پلار هغوي ۲۸
سره خبرې وکړي او مبارک ئې کړل او هر يو ئې موافق دَ خپل برکت هغوي
مبارک کړل ۲۹ او ورته ئې وصيت وکړ او ورته ئې وويل چه زه له خپل ۲۹

قام سره جمع کيږم ما خپلو پلرونو څخه په هغه غار کښې چه دَ عفرون حتيّ
۳۰ په پټيږ کښې دي خښ کړئ ۳۰ هغه غار چه په پټيږ دَ مکپيلاه چه ممرئ
نه مخامخ دَ کنعان په زمکه کښې دي چه هغه ابراهام له پټيږ سره له
۳۱ عفرون حتيّ نه دَ قبر دَ ملکيت دَپارَ وپيروده ۳۱ هلته ابراهام اودَ هغه
ښځه ساراه يُي خښ کړل او هلته اسحاق اودَ هغه ښځه ربقاه يُي خښ
۳۲ کړل او هلته مِ لياه خښه کړله ۳۲ دَ هغه پټيږ اودَ هغه غار چه
۳۳ په کښې دي دَ حيث له ځامنو نه وپيرودلي شه ۳۳ اوچه يعقوب دَ
خپلو ځامنو له وصيّت کولو نه وزګار شه خپلي پښي يُي پالنګ ته جمع
کړلي او روح يُي وسپاره او له خپل قام سره جمع شه +

# پنځوسم باب

۱ ۱ او يوسف دَخپل پلار په مخ پريوت او په هغه يُي وژړل او ښکل يُي کړ
۲ ۲ نو يوسف خپلو غلامانو طبيبانو ته حکم وکړ چه په هغه مساله ومښي
۳ نو طبيبانو اسرائيل په مساله ومښود ۳ او څلويښت ورځي پوره شوي دَ هغه
دَپارَ څکه چه دومره ورځي پوره کيږي دَ مساله مښونکو او مصريانو
په هغه اويا ورځي وژړل

۴ ۴ چه دَ هغه دَ ژړا ورځي تيري شولي نو يوسف دَ فرعون کور سره
خبري وکړي و يُي ويل که ستاسو په نظر کښې ما مهرباني موندلي وي دَ
۵ فرعون په غوږونو کښې خبري وکړئ ووايئ ۵ زما پلار ما له سوګند راکړ
و يُي ويل چه ګوره زه مرم په خپل قبر کښې چه دَ کنعان په زمکه کښې
مِ دَ ځان دَپارَ کنولي دي هلته مِ خښ کړه نو اوس به وخيژم چه
۶ خپل پلار خښ کړم او را وګرزم ۶ نو فرعون وويل چه وخيژه اوخپل پلار
۷ خښ کړه لکه چه يُي تا له سوګند درکړ ۷ او يوسف دَ خپل پلار د خښولو
دَپارَ وخوت او ورسره دَ فرعون ټول خدمتګاران دَ هغه دَ کور مشران
۸ او دَ مصر دَ زمکي ټول مشران وختل ۸ او دَ يوسف ټول کور او دَ
هغه ورونړه اودَ هغه دَ پلار کور مګر دوي خپل وړوکي اوخپل ګنډکونه

او خپلي غوا دَ جوشن په زمکه کښ پرېښودل ۹ او گاډي او سواره ور سره ۹
وختل او ډېر لوي لښکر وه ۱۰ او دَ اطاد درمند له چه له اردين نه پوري ۱۰
دي راغلل او هلته ئې وير وکړ په لوي او ډېر سخت وير سره او دَ خپل
پلار دَپارَ ئې اوه ورځي ماتم وکړ ۱۱ او چه دَ زمکي اوسيدونکو کنعانيانو ۱۱
دا ماتم دَ اطاد په درمند کښ وليده و ئې ويل چه دَ مصريانو دا ماتم سخت
دي ځکه دَ هغه نوم آبيل مصريم کښېښودي شه چه له اردين نه پوري
دي ۱۲ او ځامنو ئې په هغه شان چه ئې ور ته وصيت کړي وه وکړل ۱۲
۱۳ او ځامنو ئې هغه دَ کنعان زمکي ته يووړ او ښخ ئې کړ دَ مکپيلاه ۱۳
دَ پټي په غار کښ چه ابراهام هغه له پټي سره دَ قبر دَ ملکيت دَپارَ
له حتيّ عفرون نه پيرودلي وه ممرئ ته مخامخ
۱۴ او يوسف مصر ته وجاروت هغه او دَ هغه وروڼه او هغه ۱۴
ټول چه دَ هغه دَ پلار دَ ښخولو دَپارَ ورسره ختلي وُو پس له دي چه
خپل پلار ئې ښخ کړ ۱۵ او چه دَ يوسف وروڼو وليدل چه دَ هغوي پلار ۱۵
مړ شه و ئې ويل چه ښائي يوسف له موږ سره به سختي وکړي ټوله
بدي چه موږ ورسره کړي دَه په موږ باندِ به ئې را وګرزوي ۱۶ نو ۱۶
يوسف ته ئې وليږه و ئې ويل چه ستا پلار مخوا له خپل مرګ نه وصيت
وکړ و ئې ويل ۱۷ چه يوسف ته داسي ووايئِ ګناه دَ خپلو وروڼو او ۱۷
خطائې عفوَ کړه ځکه چه تا سره ئې بدي کړي دَه نو اوس ستا دَ پلار
دَ الله دَ غلامانو بدي عفوَ کړه نو يوسف وژړل چه ورسره ئې خبري
وکړي ۱۸ او وروڼه ئې هم ورغلل او دَ وړاندِ ئې پريوتل او و ئې ويل ۱۸
چه ګوره موږ ستا غلامان يُو ۱۹ نو يوسف ور ته وويل مه ويريږئ ۱۹
باري زه دَ الله په ځاي يم څه؟ ۲۰ تاسو په ما دَ بدئ قصد وکړ ۲۰
ليکن الله دَ نيکئِ قصد وکړ چه وکړي لکه نن ورځ چه ډېر امّت
ژوندِي وساتِي ۲۱ نو اوس مه ويريږئِ زه به تاسو او ستاسو وړوکِي ۲۱
وپالم نو هغوي له ئې تسلّه ورکړله او دَ هغوي زړونه ئې جمع کړل

۲۲ ۲۲ او یوسف په مصر کښې استوګنه وکړه هغه او دَ پلار کور ئې او یوسف
۲۳ لس دَ پاسَ سل کالَ ژوندون وکړ ۲۳ او یوسف دَ افرئم ځامن تر دریمي
پیړئ پورې ولیدل او هم ځامن دَ ماکیر زوي دَ منسّه دَ یوسف په
۲۴ زنګنونو پیدا شول ۲۴ او یوسف خپلو ورونړو ته وویل چه زه مرم او
الله به ضرور په تاسو توجّه وکړي او تاسو به له دې زمکې نه وخیژوي
هغې زمکې ته چه ابراهام او اسحاق او یعقوب سره ئې قسم کړې
۲۵ دي ۲۵ او یوسف دَ اسرائیل ځامنو له سوګند ورکړ و ئې ویل چه الله
به تاسو ته توجّه وکړي نو تاسو ځما هډوکي له دلته نه وخیژوئ
۲۶ ۲۶ نو یوسف مړ شه لس دَ پاسَ دَ سلو کالو وه او هغه ئې په
مساله ومښود او په مصر کښې په تابوت کښې کښېښودې شه *

# خروج

## يعني دويم كتاب دَ حضرت موسیٰ

## اوّل باب

۱ ۱ نو دا دِي نومونَ دَ بنيِ اسرائيلو چه مصر ته راغلي وُو- سره دَ يعقوب
۲ راغي هر سړي او دَ هغه كور ۲ رؤبين او شمعون او لاوِي او يهودا-
۳ ۴ ۵ ۳ يسّاكر او زبولُن او بنيامين ۴ دان او نفتالي او جاد او اشير ۵ او ټول
خانونه چه دَ يعقوب له پُښتَ وتلي وُو اويا تنه وُو- ليكن يُوسف په
۶ مصر كښ وه ۶ او يُوسف مړ شه او ټول ورونړه ئي او ټولي هغه پيړئِ -
۷ ۷ او بني اسرائيل بارور شول او كثير شول او زيات شول اوزورور شول
او زمكه له دوي نه ډكه شوله

۸ ۹ ۸ نو په مصر كښ يو نوي بادشاه چه يوسف ئي نه پيژانده قايم شه ۹ نو
هغه خپل قام ته ووِ چه گوريئِ- قام دَ بنيِ اسرائيلو له مونږ نه ډير اوزورور
۱۰ دي ۱۰ راشئِ چه يوه حيله ور ته جوړه كړُو هسي نه وِي چه ډير شي نو
بيا چه چرته جنګونَ پيښ شِي دوي به مو له دشمنانو سره يو ځاي شِي او له
۱۱ مونږ سره به جنګونَ وكړِي او له ملكَ به پورته وخيژِي ۱۱ له دي كبلَ هغوي
پرِ باندِ سرداران دَ كار اخستلو مقرّر كړل چه هغوي په خپلو بارونو
باندِ وآزارَوِي- نو دوي دَ فرعون دَپارَ دوه ښهرونَ دَ خزاني چه فيشون او
۱۲ رَعمسيس نامي ئي دِي جوړ كړل ۱۲ ليكن هرڅو چه به ئي دوِي ته ضرر رساوه
همرِه به دوي زياتيدل او ډيريدل- نو دوي په سبب دَ بنيِ اسرائيلو خپه شول
۱۳ ۱۴ ۱۳ نو مصريانو بنيِ اسرائيل په ظلم سره خدمتګاران كړل ۱۴ او دَ دوي ژوندون
ئي په سخت خدمت دَ خټو او دَ خښتو او په هر قسم كار دَ زميداريِ كښ
تريخ كړ- او دَ هغوي ټول خدمتونَ چه دوي كول په سختيِ وُو
۱۵ ۱۵ نو دَ مصر بادشاه دَ عبرانيانو دائيانو ته چه دَ يوي نامه شِفراه او دَ بلي

۱۶ نوعاه وَه داسي ووِ ۱۶ او و ئي ويل هر كله چه تاسو دَ عبرانيانو دَ ښځو
دائِي توب كوئِ او تاسو هغوي په كنڙاوو ووينئِ كه چرې زوي وِي نو
۱۷ و ئي وژنئِ او كه جنئِ وِي نو ژونديِ ئي پريږدئِ ۱۷ ليكن دائِكاني له
الله ووېريدې او هغه شان كار ئي لكه چه دَ مصر بادشاه ورته
۱۸ حكم كړي وه و نه كړ مگر ځامن ئي ژونديِ پرېښول ۱۸ پس بادشاه
دَ مصر دايانې وبللي ورته ئي ووِ چه تاسو ولې دا كار كړي دي او
۱۹ ځامن تاسو ژونديِ پرېښې دِي ۱۹ نو دايانو فرعون ته ووِ چه دَ عبرانيانو
ښځې دَ مصر دَ ښځو په شان نه دِي ځكه چه هغوي توټ‌ناكې دِي
۲۰ هغوي پخوا تر هغي چه څو ورته دائِي رسي لنگې شوي وِي ۲۰ نو الله
دايانو سره احسان وكړ او هغه امّت ډېر او نهايت زورور شه -
۲۱ ۲۱ او داسې وشول چه دايانې له الله نه ووېريدې نو الله هغوي له
۲۲ كورونه آباد كړل ۲۲ پس فرعون خپل ټول قام ته حكم وكړ و ئي ويل
هر زوي چه پيدا شي هغه به دَرياب ته غورزوئِ او هره لور به
ژونديِ پرېږدئِ +

# دويم باب

۱ ۱ پس دَ لاوِي له خاندانَ يو سړي لاړ او دَ لاوِي يوه لور ئي واخسته
۲ ۲ نو دَ ښځې كيدَه شوه زوي يې راوړ چه هغه ئي وليد چه ښائسته
۳ وه نو درې مياشتې ئي هغه پټ كړ ۳ او هر كله چه نور ئي نه شه
پټولې نو دَ هغه دَپارَه ئي يوه كشتيِ دَ درمو جوړه كړه په خُمر او په
زفتو سره ئي ليوه كړه او هلك ئي په هغي كښ كښيښود او هغه ئي
۴ په درمو كښ په غاړه دَ دَرياب كښيښوده ۴ او دَ هغه خور لرې ولاړه
۵ وَه دَ ليدو دَپارَ چه څه به پرِ وشي ۵ نو دَ فرعون لُور دَرياب ته كوزه
شوه دَ لنبلو دَپارَ او وينځې ئي دَ دَرياب په غاړه گرزيدلې- نو هر كله
۶ چه په درمو كښ ئي وليده نو وينځه خپله ئي وليږله ۶ او هر كله
چه ئي پرانسته نو هلك ئي وليد او گوره ماشوم ژاړې نو زړه ئي پرِ

وسه و ئي ويل دا دَ عبرانيانو له اولادَ دي ٧ نو خور ئي دَ فرعون لور ٧
ته ووِ چه زه لاړه شم څه؟ چه تا له ئي وركوونكي ښځه له عبرانيانو
نه راوبولم چه ستا دَپارَ دي هلك له تيَ وركړي ٨ نو دَ فرعون لور ٨
ور ته ووِ چه لاړه شه- نو جنئ لاړله او دَ هلك مور ئي راوبلله-
٩ نو هغي ته دَ فرعون لور ووِ چه دا هلك يوسه او څما دَپارَ وله تيَ ٩
وركوه زه به مزدوري دركوم- نو ښځي هلك واخست او تيَ به ئي وركاوه
١٠ او چه هلك لوي شه نو هغه ئي دَ فرعون لور له بوت نو دَ هغي ١٠
زوي شه او نوم ئي موسیٰ كښيښود او و ئي وِ چه ما دي له اوبو
وكښلي دي

١١ او په هغو ورځو كښ داسي وشول چه موسیٰ لوي شه نو ١١
خپلو وروڼو له بهر لاړ او دَ دوي بارونو ته ئي وكتل- نو مصري ئي
وليد چه يو عبراني دَده له وروڼو نه وهي ١٢ نو يو خوا بل خوا ئي ١٢
وكتل چه ئي وليد چه هيڅوک نشته نو مصري ئي وواژه او په شګو
كښ ئي پټ كړ ١٣ او چه په دويمه ورځ بهر ووت نو ګوره دوو تنو عبرانيانو ١٣
جنګ كاوه نو قصور كوونكي ته ئي ووِ چه خپل ملګري دِ ولي وهي ١٤ نو ١٤
و ئي ويل چه ته چا په مونږ حاكم يا قاضي كړي يي لكه چه دِ مصري
وژلي دي داسي دِ څما دَ وژلو هم نيّت كړي دي څه؟ نو موسیٰ وويريده
او و ئي ويل چه په ريښتيا حال معلوم شه ١٥ فرعون چه دا حال ١٥
واوريده نو و ئي غوښته چه موسیٰ ووژني ليكن موسیٰ دَ فرعون له
مخي نه وتښتيده او دَ مديان په زمكه كښ استوګني شه او يو كوهي
څنګ كښيناست ١٦ او دَ مديان دَ كوهن اوه لوڼه وي نو راغللي اوبه ١٦
ئي ويستلي اخورونه ئي ډكول چه دَ خپل پلار كنډګونَ اوبه كړي-
١٧ نو شپانه راغلل دوي وشړلي نو موسیٰ ور پورته شه له هغوي ١٧
سره ئي مدت وكړ او كنډګونَ ئي دَ هغوي اوبه كړل ١٨ هر كله چه دوي ١٨
رعوئيل خپل پلار له راغللي نو و ئي ويل چه څه سبب وه چه نن

۱۹ وِخِتي راغلئِ ۱۹ هغوي ووِ يو مصرِي سړي وه مونږ ئي دَ شپنو له
لاسونو نه خلاصي کړو او اوبه ئي لاله وکښلي او کندکوڼ ئي اوبه کړل
۲۰ ۲۰ نو هغه خپلو لُونړو ته ووِ چه هغه سړي چرته دي تاسو هغه سړي
۲۱ ولي پرِيښوه را و ئي بلئِ چه ډوديْ وخوړِي ۲۱ نو موسيٰ له هغه سړِي
سره په اوسيدو راضِي شه- نو موسيٰ له ئي خپله لُور صفوره ورکړله
۲۲ ۲۲ نو هغي زوي راوړ نوم ئي وله جِرشوم کښيښود وِ ئي ويل څکه چه
زه په بيګانه زمکه کښ مسافر يم
۲۳ ۲۳ پس له ډيرو ورځو داسي شول چه دَ مصر بادشاه مړ شه
او بنِي‌اسرائيلو به په سبب دَ مشقتونو اسوېلِي وکښل او چغي به ئي
۲۴ وهلي- نو دَ دوي چغي په سبب دَ مشقتونو پورته الله له لاړي ۲۴ نو
الله دَ دوي فرياد واوريده نو الله خپله وعده چه له ابراهامَ او له
۲۵ اسحاقَ او له يعقوبَ سره کړي وه ياده کړه ۲۵ او الله بنِي اسرائيلو ته
وکتل او الله ئي ياد کړ *

# دريم باب

۱ ۱ او موسيٰ دَ خپل خسر دَ مديان دَ کوهن کندکوڼ څرول نو کندکوڼ
۲ ئي دَ ميري مينځ ته وشړل او حوريب دَ الله غره له راغي ۲ ده ته
يوه فرښته دَ خداوندِ دَ اور په لنبه کښ دَ بوټِي له مينځ ظاهره شوه
نو و ئي کتل او کوره چه دَ بوټِي نه دَ اور لنبه خته او نه سوزيده
۳ ۳ نو موسيٰ ووِ چه اوس به ورشم چه دا لويه ننداره وګورم چه
۴ بوټي ولي نه سوزِي ۴ نو چه خداوند وليده چه دي دَ ننداري دَ ليدلو
دَپارَ وروجاروت نو دَ هغي بوټِي له مينځ نه ور ته الله آواز وکړ و ئي
۵ ويل موسيٰ موسيٰ- هغه ووِ چه دا يم ۵ نو و ئي ويل چه نزدي مه
راځه له پښو نه دِ پيزي وباسه څکه چه دغه ځاي چه ته پرِ باندِ
۶ ولاړ يي مقدّسه زمکه ده ۶ او و ئي ويل چه زه ستا دَ پلار الله يم
دَ ابراهام الله او دَ اسحاق الله او دَ يعقوب الله- نو موسيٰ خپل مخ

۷ پټ کړ ځکه چه دي دَ الله له ليدو ويريده ۷ نو خداوند ووِ چه تحقيق ما
خوارِي دَ خپل امّت چه په مصر کښ دي وليده او دَ هغوي چغي مِ
دَ هغوي دَ سردارانو دَ کار اخستونکو له سببَ واوريدي-زه پوهيږم
۸ دَ دوي په دردونو ۸ نو زه راکوز شوم چه دوي دَ مصريانو له لاسَ
خلاص کړم او له دغي زمکي نه يُ هغي ښائسته لويي زمکي ته چه
هلته پيَ او شهد بهيږي بوزم چه هغه دَ کنعانيانو او دَ حتّيانو او
۹ دَ اموريّانو او دَ فرزّيانو او دَ حويانو او دَ يبوسيانو ځاي دي ۹ کوره اوس
ما له دَ بنِي اسرائيلو چغه راغله او هم هغه ربړ چه مصريان يُ پرِ
۱۰ ربړوِي و مِ ليده ۱۰ نو ته اوس راشه چه دِ فرعون له وليږم ددي دپارَ
۱۱ چه ځما امت بنِي اسرائيل له مصر نه وباسي ۱۱ نو موسیٰ الله ته ووِ
چه زه څوک يم چه به فرعون له لاړ شم او بنِي اسرائيل به له مصرَ
۱۲ بهر وباسم ۱۲ نو و ئي ويل چه زه به يقينًا درسره يم-او دا ستا دپارَ نښه
ده چه ته مِ ليږلي يي هغه وقت چه ته هغه امت له مصر نه راولي
۱۳ نو تاسو به الله له په دي غره باندِ عبادت وکړئِ ۱۳ نو موسیٰ الله ته
ووِ چه کوره زه بنِي اسرائيلو له ورځم او ور ته به وايم چه زه ستاسو
دَ پلرونو الله تاسو له راليږلي يم ليکن که هغو ما ته ووِ چه دَ هغه نوم
۱۴ څه دي نو زه به ور ته څه وايم ۱۴ نو موسیٰ ته الله ووِ چه أَهْيَهْ
آشَرْ أَهْيَهْ (يعني زه يم هغه چه يم) او و ئي ويل چه ته بنِي اسرائيلو ته
۱۵ ووايه چه زه تاسو ته أَهْيَهْ راستولي يم ۱۵ او الله موسیٰ ته دا هم ووِ
چه ته به بنِي اسرائيلو ته ووايي چه ستاسي دَ پلرونو يَهْوَهْ الله - دَ
ابراهام الله او دَ اسحاق الله او دَ يعقوب الله زه تاسو ته راستولي
يم دغه نوم ځما تر ابدَ پوري دي او ځما يادول پيړو په پيړو کښ دا دي
۱۶ ۱۶ لاړ شه او دَ بنِي اسرائيلو سپين ږيري جمع کړه او هغوي ته ووايه
چه يَهْوَهْ الله ستاسو دَ پلرونو الله دَ ابراهام الله او دَ اسحاق الله
او دَ يعقوب الله ما ته ظاهر شه او و ئي ويل چه تحقيق ما ستاسو

خبرګيرِي کړي ده او دغه څه چه له تاسو سره په مصر کښ وشول
۱۷ نو ما وِو چه زه تاسو دَ مصر له خوارئِ نه وخيژوم دَ کنعانيانو او
حتّيانو او اموريّانو او فرزيانو او حويانو او يبوسيانو زمکي ته هغه
۱۸ زمکه چه پيَ او شهد په کښ بهيږِي ۱۸ نو هغوي به ستا خبره واورِي
نو ته او دَ بني اسرائيلو سپين ږيرِي دَ مصر بادشاه له ننه وځئِ او
تاسو ورته ووايئِ چه يَهُوَهْ الله دَ عبرانيانو له مونږ سره ملاقات
کړي دي اوس مونږ دَ دريو ورځو په سفر په ميرِي کښ ځو چه
۱۹ يَهُوَهْ خپل الله له قرباني وکړو ۱۹ او زه تحقيق پوهيږم چه بادشاه
دَ مصر به تاسو پرِنه ږدِي او نه په زوراور لاس سره چه لاړ شئِ
۲۰ ۲۰ نو زه به خپل لاس اوږد کړم او مصر به په هغه خپلو ټولو عجايبو
چه زه ئ په دوي کښ کوم ووهم پس له هغه به تاسو پريږدِي -
۲۱ ۲۱ او زه به دي امت له دَ مصريانو دَ وړاندِ عزت ورکړم اِو داسي به
۲۲ وشِي چه هغه وقت چه تاسو ځئِ نو تش لاس به نه ځئِ ۲۲ بلکه هره
ښځه به له خپلي ګاونډئِ نه او دَ خپلو کور له اوسيدنکي نه دَ سپينو
زرو کالِي او دَ سرو زرو کالِي او جامي وغوارِي او تاسو به ئي خپلو
زامنو او خپلو لونړو ته واغوندوئِ نو تاسو به مصريان لوټ کړئِ +

# څلورم باب

۱ ۱ نو موسیٰ جواب ورکړ و ئي وِ کوره دوي به پر ما يقين ونه کړِي
او نه به څما خبره واورِي بلکه وايِي به چه خداوند تا ته نه دي ښکاره
۲ شوي ۲ نو خداوند ورته ووِ چه دا ستا په لاس کښ څه دِي - هغه
۳ ووِ چه همسا ۳ نو هغه ووِ چه په زمکه ئي وغورزوه - نو هغه په زمکه
۴ وغورزوله نو هغه مار شوه او موسیٰ تړ وتښتيده ۴ نو خداوند
موسیٰ ته ووِ چه ته خپل لاس اوږد کړه او لکيِ ئي ونسه - نو خپل
لاس ئي اوږد کړ او هغه ئي ونيوه نو هغه دَ هغه په لاس کښ همسا
۵ شوه دَ دي دپارَ چه هغوي يقين وکړي چه ستا دَ پلرونو يَهُوَهْ الله

دَ ابراهام او الله دَ اسحاق او الله دَ یعقوب تا ته ظاهر شوي دَي -
٦ بیا خداوند ور ته ووِ چه خپل لاس په خپل گریوان کښې ننه باسه - نو ٦
هغه خپل لاس په گریوان کښې ننویست چه بیا ئي ویست نو گوره
دَ هغه لاس دَ واوري په شان برصِي وه ٧ نو وئي ویل چه ته خپل ٧
لاس بیا په گریوان کښې ننباسه - نو بیا ئي په گریوان کښې ننویست - چه
بیا ئي بهر وویست نو گوره هغه هم لکه دَ نوري جُسي په شان
شوي وه ٨ نو داسي به وشِي چه دوي په تا باندِ یقین را نه وړِي او هم ٨
ستا دَ ورنبیئِ معجزي آواز وا نه وړِي نو دوي به دَ وروستیئِ معجزي
آواز واوړِي ٩ او داسي به وشِي چه هغوي په دي دوارو معجزو یقین ٩
را نه وړِي او نه ستا خبره واوړِي نو ته دَ دریاب اوبه واخله او په
وچه زمکه ئي توي کړه نو هغه اوبه چه تا له دریابَ اخستي وِي په وچه
زمکه باندِ به وینې شِي ١٠ نو موسیٰ خداوند ته ووِ چه اي خداوندَ زه ١٠
فصیح نه یم تر اوسه پوري او نه له هغه وقتَ چه تا له خپلَ بندهٔ
سره خبري کړِي دِي ځکه چه زه په خُله کښې سُست یم او په ژبه
کښې سُست یم ١١ نو خداوند هغه ته وُوِ چه دَ سړِي خُله چا جوړه ١١
کړِي ده - او څوک ئي گنگ یا کڼ یا لیدونکي یا ړوند کوِي - ولي زه خداوند
نه یم څه ؟ ١٢ نو ته اوس ورځه او زه به ستا دَ خلي سره یم او ١٢
چه ته څه وایي هغه به در ته ښیم ١٣ نو هغه ووِ چه اي څما خداوندَ ١٣
ولیږه دَ هغه په لاس سره چه به لیږي ١٤ نو دَ خداوند خفگان په موسیٰ ١٤
باندِ گرم شه و ئي ویل چه هارون لاوِي ستا ورور نه دي څه ؟ زه
پوهیږم چه هغه به خبري کوِي - او گوره اوس ستا ملاقات له بهر
راځي او هغه وقت چه دي تا ووینې نو په زړه کښې به خوشحال شِي
١٥ نو ته به له هغه سره خبري وکړِي او خبري دَ هغه په خولي کښې ١٥
کیږده او زه به ستا دَ خولي او دَ هغه دَ خولي سره یم او ښیم به
در ته هغه څه چه تاسو ئي کوِئ ١٦ او هغه به ستا دَپارَ له خلقو سره ١٦

خبري کِوي او داسي به وښِي چه هغه به تا له دَ خولي په ځاي ښِي او ته
۱۷ به دَ هغه دَ الله په ځاي ښي ۱۷ او ته په خپل لاس کښ دا همسا واخله
دَدي دَپارَ چه ته به پرِ معجزي کوي
۱۸ ۱۸ نو موسیٰ په بیرته یِتْرو خپل خسر له لاړ او ورته ئي ووِ چه زه
په بیرته خپلو ورونړو له چه په مصر کښ دِي پري مِ ږده چه لاړ شم
اوګورم چه تر اوسَ پوري ژوندِي دِي - نو یِتْرو موسیٰ ته وُوِ چه په
۱۹ سلامتیا سره ځه ۱۹ نو خداوند په مدیان کښ موسیٰ ته ووِ چه ځه په
بیرته مصر ته لاړ شه ځکه چه هغه ټول کسانَ چه ستا په وژلو
۲۰ پسي ګرزیدل ومړل ۲۰ نو موسیٰ خپلَ ښځه او ځامن واخستل او په خر
ئي سواره کړل او په بیرتِه دَ مصر زمکي له لاړ او موسیٰ دَ الله همسا
۲۱ په لاس کښ واخسته ۲۱ خداوند موسیٰ ته ووِ چه هر کله چه ته مصر له
پستنه لاړ شِي نو ګوره هغه ټولي معجزي چه ما ستا په لاس کښ ایښي
دِي دَ فرعون په مخ کښ ئي ښکاره کړه - لیکن زه به دَ هغهَ زړه سخت کړم
۲۲ چه هغَه به هغَه امّت پري نږدِي ۲۲ نو ته فرعون ته ووایه چه خداوند
۲۳ داسي وائِي چه اسرائیل ځما زوي ځما مشر زوي دَي ۲۳ نو ما تا ته ویلي
دِي چه ځما زویي پریږده چه ځما عبادت وکړي او تا دَ هغه پرېښودل
۲۴ منع کړي دِي نو ګوره زه به ستا زوي مشر زویي ووژنم ۲۴ په لاري
سراي کښ داسي وشول چه خداوند وریښ شه او وئي غوښتله چه دئي
۲۵ ووژني ۲۵ نو صفوري دَ کاڼي تیرمبوکي راواخست او زویي سنّت کړ
او هغه ئي دَ هغه په پښو کښ وغورزوله او وئي ویل ته ځما دَپارَ
۲۶ دَ وینې ختنن یي ۲۶ نو هغه ئيُ پریښود - هغي ووِ چه ته دَ سنّت له
سببَ دَ وینو ختنن یي
۲۷ ۲۷ او خداوند هارون ته ووِ چه بیابان ته لاړ شه او موسیٰ سره
ملاقات وکړه - نو هغه لاړ شه نو دَ الله په غره باندِ ئي له هغه
۲۸ سره ملاقات وکړ او هغه ئي ښکل کړ ۲۸ او موسیٰ دَ خداوند چه

ئې دي ليږلي وه ټولي خبري او هغه معجزي چه ئې ده له ورکړي وي
هارون ته بيان کړي ۲۹ نو موسیٰ او هارون لاړل او دَ بني اسرائيلو ۲۹
ټول سپين ږيري ئې په يو ځاي کښ جمعَ کړل ۳۰ نو هارون هغه ۳۰
ټولي خبري چه يَهُوَهْ موسیٰ ته کړي وي وويِ او دَ خلقو دَ سترګو
دَ وړاندِ ئې معجزي وکړي ۳۱ نو خلقو ايمان راوړ او هغوي چه دا خبره ۳۱
واوريده چه يَهُوَهْ دَ بني اسرائيلو خبرګيري وکړه او دَ هغوي خواريْ
ته ئې وکتل نو پرمخې پرېوتل او سجده ئې وکړه ❊

## پنځم باب

۱ پس له هغه موسیٰ او هارون راغلل او فرعون ته ئې وويل چه ۱
يَهُوَهْ دَ اسرائيل الله داسي وايي چه زما امّت پرېږده چه هغوي په
بيابان کښ زما دپارَ اختر وکړي ۲ فرعون ووِ چه يَهُوَهْ څوک دي چه ۲
زه دَ اسرائيل په پرېښودلو کښ دَ هغه اواز واورم۔ زه نه يَهُوَهْ
پيژنم او بني اسرائيل به هم پري نږدم ۳ نو هغو ووِ چه دَ عبرانيانو ۳
الله له مونږ سره ملاقات کړي دي مونږ له رخصت راکړه چه مونږ
دَ دريو ورځو په سفر ځنګل ته لاړ شو او دَ يَهُوَهْ خپل الله دپارَ
قرباني وکړو چري نه وِي چه په وبا يا په تُوري سره په مونږ پيښ شي
۴ نو دَ مصر بادشاه هغوي ته ووِ چه اي موسیٰ او اي هارونَ ۴
هغه امّت له خپلو کارونو ولي خلاصوئِ۔ تاسو په خپلو بارونو پسي
ورځئ ۵ او فرعون ووِ چه اوس دَ زمکي امّت ډير دي او تاسو دوي ته ۵
له خپلو بارونو نه آرام ورکوئ ۶ او هم هغه ورځ فرعون هغه خدمت ۶
اخستونکو ته چه په امّت وُو او خپلو ليکونکو ته حکم وکړ ۷ و ئې ۷
وِ چه دوباره دَ پخوا په شان ته خلقو ته دَ خښتو جوړولو دپارَ بوس
مه ورکوئِ دوي دِ پخپله ځي او ځان له دِ بوس ټولوِي ۸ او څومره ۸
خښتي چه دوي پخوا جوړولي هغه همره پرِ مقرري کړئِ او له هغي نه
ئې مه کموئِ ځکه چه دوي سست دِي او له دي سببَ دوي فرياد

٩ کوي وايي راشئ چه ځو او الله له قرباني وکړو ۹ او دروند کار دِ په
سړو باندِ مقرّر شي چه په هغه کښ کار وکړي او دَ دروغو خبرو
۱۰ خيال نه کوي ۱۰ نو دَ کار اخستولو سرداران او دَ هغه ليکونکي ووتل
او هغو خلقو ته ئي داسي ووِ چه فرعون وايي چه زه تاسو له بوس
۱۱ نه درکوم ۱۱ ځئ خپل ځان له بوس راورئ چه چرته ئي مومئ ليکن
۱۲ ستاسو کار به هيڅ کم نه شي ۱۲ نو هغه خلق دَ مصر په تمام ملک
کښ خواره شول دَ دي دَپارَ چه دَ بوسو په بدله کښ درُوزه جمع کړي
۱۳ ۱۳ او هغي ليکونکو به پرِ تلوار کوله ورته به ئي وِ چه خپل کارونَ
دَ خپلي هري ورځي کارونَ پوره کوئ-لکه چه دَ بوسو په ورځو کښ-
۱۴ ۱۴ او دَ بني اسرائيلو سرداران چه دَ فرعون کاراخستونکو په هغوي باندِ
ودرولي وُو وهل به ئي-او ورته به ئي ويل چه تاسو ولي دَ پرون
او دَ نن خپل مقرّر خدمت دَ خښتو جوړولو دَ پخوا په شان نه پوره
۱۵ کوئ ۱۵ نو دَ بني اسرائيلو سرداران فرعون ته راغلل او فرياد ئي وکړ
۱۶ ورته ئي ووِ چه له خپلو غلامانو سره داسي ولي کوئ ۱۶ هغوي
ستا خادمانو له بوس نه ورکوي او مونږ ته وايي چه خښتي جوړوئ
او گوره ستا خادمان وهلي شوي دِي ليکن گناه ستا دَ خلقو ده-
۱۷ ۱۷ هغه ووِ چه تاسو سست يئ له دي سببَ تاسو وايئ پريږده چه
۱۸ مونږ ځو چه يَهْوَهْ له قرباني وکړو ۱۸ نو اوس ځئ کار کوئ او بوس
۱۹ نه شي درکولي تاسو ته او دَ پخوا په حساب به خښتي ورکوئ ۱۹ او
دَ بني اسرائيلو سردارانو وليدل چه هغوی په تنگ حال کښ وُو چه
ويلي شو چه تاسو دَ خپلو خښتو جوړولو دَ خپلي هري ورځي کار مه کموئ
۲۰ ۲۰ او دوي چه له فرعون نه ووتل په موسیٰ او په هارون پيښ شول
۲۱ چه په لارِ کښ ولاړ وُو ۲۱ نو دوي ورته ووِ چه خداوند دِ تاسو ته
وگوري او انصاف دِ وکړي ځکه چه تاسو مونږ گنده کړو دَ فرعون
په سترگو کښ او هم دَ هغه دَ غلامانو په سترگو کښ تر هسي

حدَ پوري چه تاسو دوارو دَ هغو په لاسونو کښں ثُوره ورکړه چه
۲۲ مونږ ووژني ۲۲ نو موسیٰ په بيرته خداوند له لاړ او وَ ئي وِ چه اي
۲۳ خداوند تا له دي امّت سره ولي بد وکړه تا ولي زه دوي ته ولېږلم ۲۳ ځکه
چه له هغه وقتَ چه زه فرعون له راغلم چه ستا په نوم کښں خبري
وکړم هغه له دي امّت سره بدي وکړه او تا خپل امّت بالکل خلاص نه کړ

## شپږم باب

۱ ۱ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه اوس به گوري چه زه به له فرعون
سره څه وکړم ځکه چه دي به په قوِي لاس سره دوي پرېږدِي بلکه
په قوِي لاس سره به ئې له خپلي زمکي نه وشړِي
۲ ۲ نو الله موسیٰ ته خبري وکړي ور ته ئې ووِ چه زه يَهُوَه
۳ يم ۳ او زه ابراهام او اسحاق او يعقوب ته په الله قادر سره ظاهر
شوي وم او په خپل نوم يَهُوَه سره په دوي کښں پېژندلي شوي نه وم
۴ ۴ او ما له هغوي سره خپله وعده قائمه کړي ده چه دَ کنعان
زمکه چه دَ هغوي دَ مسافرئ زمکه دَه چه په هغي کښں هغوي
۵ مسافر وُو هغوي له به ئې ورکړم ۵ او هم فرياد دَ بني اسرائيلو
چه دوي مصريان په غلامئ کښں ساتي وا م وريده او خپله وعده
۶ مِ ياده کړه ۶ نو له دي سببَ ته بني اسرائيلو ته ووايه چه زه يَهُوَه
يم او زه به تاسو دَ مصريانو له بارونو دَ لاندِ نه وباسم او زه به تاسو
له دَ هغوي له غلامئ نه خلاص کړم او زه به په هسک لاس سره
۷ او په ډېر لويِ انصاف سره خلاص کړم ۷ او زه به تاسو خپل امت
کړم او زه به ستاسو الله يم او تاسو به پوه شئ چه زه خداوند ستاسو
۸ هغه الله يم چه تاسو دَ مصريانو دَ بارونو له لاندِ نه وباسم ۸ او زه به
تاسو په هغه زمکه کښں ننه باسم چه دَ هغي په حق کښں ما خپل لاس
پورته کړي دي چه هغه به ابراهام او اسحاق او يعقوب له ورکړم
۹ او زه به هغه ستاسو په ميراث درکړم ـ خداوند زه يم ۹ او موسیٰ بني اسرائيلو

ته داسي وو ليکن هغو په سبب دَ تنګوالي دَ زړه او دَ سخت محنت
موسیٰ ته غوږ کښېنې نه ښود
١٠ بيا خداوند موسیٰ ته خبري وکړي او وئي ويل ١١ چه ننوځه ١٠ ١١
فرعون دَ مصر بادشاه ته ووايه چه هغه بني اسرائيل له خپلي
زمکي نه بهر پرېږدي ١٢ نو موسیٰ دَ خداوند دَ وړاندې خبري وکړي وئي ويل ١٢
چه ګوره چه بني اسرائيلو خو ځما خبره وانه وريده ځکه چه شونډي
مې نامختوني دي نو فرعون به ځما څه رنګ واوري ١٣ نو الله موسیٰ ١٣
او هارون ته خبري وکړي او هغوي ته ئي دَ بني اسرائيلو او دَ
بادشاه دَ مصر دَ فرعون په حق کښې داسي حکم ورکړ چه بني اسرائيل
دَ مصر له زمکي نه بهر بوزئ
١٤ دا سرداران دَ هغوي دَ خاندان دي۔ ځامن دَ رؤبين ١٤
چه دَ اسرائيل مشر زوي وه دا دي حنوک او فلو او حصرون او
کرمي۔ دا دَ رؤبين قبيلي دي ١٥ او دَ شمعون ځامن دا دي يموئيل ١٥
او يامين او اُهَد او ياکين او ځوحر او شاؤل زوي دَ کنعانيې۔ دا دَ
شمعون قبيلي دي ١٦ او دَ لاوي دَ ځامنو نومونه دا دي موافق دَ ١٦
هغوي دَ پيړيو۔ جِرشون او قهات او مراري۔ او دَ لاوي دَ ژوندانه
عمر يو سل اوه ديرش کاله وه ١٧ دَ جِرشون ځامن لبني او شمعي ١٧
وُو موافق دَ دوي دَ قبيلو ١٨ او دَ قهات ځامن عَمرام او يِضهار ١٨
او حِبرون او عزّئيل وُو۔ او قهات يو سل دري ديرش کاله ژوندي
وه ١٩ او دَ مراري ځامن محلي او موشي وُو۔ دَ لاوي قبيلي موافق دَ ١٩
هغوي له پيړو سره دا دي ٢٠ او عمرام يوکبد دَ پلار خور ښځي کيدو ٢٠
له واخستله نو هغه له ئي هارون او موسیٰ را وړل۔ او دَ عمرام دَ
عمر کالونه اوه ديرش او سل کاله وُو ٢١ او دَ يصهار ځامن قورح او ٢١
نفج او ذکري وُو ٢٢ او دَ عزّئيل ځامن ميشائيل او الصافان او ستري ٢٢
وُو ٢٣ او هارون اَليشبَع دَ عميناداب لور دَ نحشون خور خپل ځان ٢٣

له بنځه واخستله - نو هغه له يُ ناداب او ابيهو او العازار او ايثامار
۲۴ راوړل ۲۴ او دَ قورح ځامن اسير او القانه او ابياسف وُو دا دَ قورحيانو
۲۵ قبيلي وي ۲۵ او دَ هارون زوئ العازار يوه دَ فوطئيل دَ لونړو نه خپل
ځان له بنځه واخستله هغي فينحاس راوړ - دَ لاوي دَ پلرونو نيکونو
۲۶ دَ خپلو قبيلو په شان دا سرداران دِي ۲۶ دا هغه هارون او موسیٰ
دِي چه خداوند دوي ته ووِ چه بنيِ اسرائيل او دَ هغوي فوځونَ دَ مصر
۲۷ له ملکَ راوباسئِ ۲۷ دوي هغه دِي چه خبري يُ کړي وي دَ مصر
بادشاه فرعون سره دَ پارَ دَ راوستو دَ بنيِ اسرائيلو له مصر نه - دا هغه
موسیٰ او هارون دِي

۲۸ ۲۸ او داسي وشوه چه هغه ورځ چه خداوند له موسیٰ سره خبري
۲۹ وکړي دَ مصر په زمکه کښ ۲۹ نو خداوند موسیٰ ته خبري وکړي و يُ
ويل چه زه خداوند يم ته فرعون دَ مصر بادشاه ته هر هغه څه چه زه يُ
۳۰ تا ته وايم ووايه ۳۰ نو موسیٰ دَ خداوند په مخ کښ ووِ چه گوره ځما خو
شونډي نامختوني دِي نو فرعون به ځما خنګه واورِي +

## اوم باب

۱ ۱ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه گوره ما ته دَ فرعون الله کړي يي او
۲ ستا ورور هارون به ستا نبي وِي ۲ ته وايه هر هغه چه زه يُ درته
حکم کوم او ستا ورور هارون به له فرعون سره خبري کوِي چه
۳ بنيِ اسرائيل دَ خپلي زمکي نه پريږدِي ۳ ليکن زه به دَ فرعون زړه
سخت کړم او دَ مصر په ملک کښ به خپلي معجزي او خپل عجائب
۴ ډير کړم ۴ او ستاسو به فرعون وانه ورِي او خپل لاس به په مصر
باندِ کيږدم نو و به باسم خپل لښکر خپل امت بنيِ اسرائيل دَ مصر
۵ له زمکي نه سره دَ لويو انصافو ۵ نو مصريان به پوه شِي چه زه
خداوند يم هغه وقت چه زه خپل لاس اوږد کړم په مصر باندِ او
۶ بنيِ اسرائيل دَ دوي له مينځ نه وباسم ۶ نو موسیٰ او هارون هم

۷ هغه سي وکړ څنګه چه ورته خداوند حکم وکړ ۷ او چه دوي له فرعون
سره خبري کولي موسیٰ دَ اتیاؤ کالو وه او هارون دَ دري اتیاؤ کالو
۸-۹ ۸ او خداوند موسیٰ او هارون ته خبري وکړي و ئې ویل ۹ چه
هر کله چه فرعون تاسو ته خبري وکړي او ووايي چه معجزه ښکاره
کړئ. نو ته هارون ته ووایه چه خپله همسا واخله او دَ فرعون دَ
۱۰ وړاندِ ئې وغورزوه - نو هغه به ښامار شي ۱۰ نو موسیٰ او هارون
فرعون ته ننه وتل او هغوي لکه چه خداوند هغوي ته حکم کړي وه
هغه وکړل - هارون خپله همسا دَ فرعون او دَ هغه دَ نوکرانو دَ وړاندِ
۱۱ وغورزوله نو هغه ښامار شوه ۱۱ نو فرعون هم حکیمان او جادوګران
راوبلل نو دَ مصر هغو جادوګرانو هم په خپل جادو سره دغه سي وکړل
۱۲ ۱۲ هر یوه خپله همسا وغورزوله - نو هغه ټولي ښاماران شولي لیکن
۱۳ دَ هارون همسا دَ هغو همساګاني ونغړدلي ۱۳ نو دَ فرعون زړه سخت
شه او دوي ته ئې غوږ کښېښي نه ښود لکه چه خداوند ویلي وُو
۱۴ ۱۴ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه زړه دَ فرعون سخت شوي دي
۱۵ دَ امّت له پرېښودلو انکار کوي ۱۵ اوس ته فرعون له صبا لاړ شه
کوره چه هغه به دریاب له ځي او ته دَ هغه دَ ملاقات دَپارَ دَ دریاب
په غاړه ودرېږه او هغه همسا چه ښامار شوي وه ته ئې په خپل لاس
۱۶ کښ واخله ۱۶ او ته هغه ته وایه چه یَهْوَهْ دَ عبرانیانو الله زه تا له
رالیږلي یم وِ ئې چه خما امّت پرېږده دَدي دَپارَ چه دوي په میره کښ
۱۷ خما عبادت وکړي او کوره تا تر اوسَ پوري وا نه وریدل ۱۷ یَهْوَهْ داسي
وايي چه په دي به ته پوه شي چه زه خداوند یم کوره چه زه دا همسا
چه خما په لاس کښ ده دَ دریاب په اوبو به ئې ووهم او هغه به وینې
۱۸ شي ۱۸ او مهي چه په دریاب کښ دي و به مړي او دریاب به بدبوئ
۱۹ شي او مصریان دَ دریاب دَ اوبو له څښلو نه به نفرت وکړي ۱۹ نو خداوند
موسیٰ ته ووِ چه هارون ته ووایه چه خپله همسا واخله او خپل لاس

اوږد کړه دَ مصر په اوبو بانْدِ دَ دوي په سیندونو بانْدِ او د دوي
په ولي بانْدِ او دَ دوي په ډنډونو بانْدِ او دَ دوي په ټولو حوضونو بانْدِ
چه هغه وینې شِي نو دَ مصر په ټوله زمکه کښ هم دَ لرګِو په لوښو
کښ او هم دَ کاڼړو په لوښو کښ به وینې شِي ۲۰ نو موسیٰ او هارون ۲۰
لکه چه خداوند حکم کړي وه هغه سي کار ئې وکړ۔ هغه همسا پورته
کړه اوبو ئې ووهلې چه په دریاب کښ وې دَ فرعون دَ سترګِو دَ وړاندِ
او دَ هغه دَ نوکرانو دَ سترګو دَ وړاندِ۔ او اوبه چه په دریاب کښ وې
وینې شوي ۲۱ او دَ دریاب مهې وسړل او دریاب بدبوئ شه او دَ ۲۱
مصر خلقو دَ دریاب اوبه نه شوي څښلې او دَ مصر په ټوله زمکه
کښ وینې وې ۲۲ نو دَ مصر جادوګرانو هم په خپل جادو سره دغه سي ۲۲
وکړل او دَ فرعون زړه سخت شه او دوي ته ئې غوږ کښېنه نه ښود۔ لکه
چه خداوند ویلي وُو ۲۳ نو فرعون تړ وګرزیده او خپل کور ته ننه وت او ۲۳
زړه ئې دي ته متوجّه نه کړ ۲۴ نو ټولو مصریانو چاپیره له دریاب نه ۲۴
دَ اوبو څښلو دَپارَ وکنستل څکه چه دوي دَ دریاب اوبه نه شوي
څښلې ۲۵ او پس له هغه چه خداوند دریاب وواهه اوه ورځې پوره شوئ ۲۵

# اتم باب

۱ نو موسیٰ ته خداوند ووِ چه فرعون ته ور ننوزه او ور ته ووایه چه ۱
خداوند دغه سي وایِي چه څما امّت پرېږده دَدي دَپارَ چه څما عبادت
وکړِي ۲ او که دَ دوي له پرېښودو نه انکار کوي نو ګوره حدونَ به دِ ۲
په چندخو سره ووهم ۳ نو له دریاب نه به ډېري چندخې وغوځېږِي ۳
نو پورته به شِي او ستا په کور کښ او ستا د څملاستو په ځاي
او ستا په کټ بانْدِ او ستا دَ نوکرانو په کور کښ او ستا په قام او
ستا په تنورونو کښ او ستا په ښانکونو کښ به ننوزِي ۴ په تا او ۴
ستا په قام او ستا په نوکرانو به چندخې وخیژِي ۵ نو موسیٰ ته خداوند ۵
ووِ چه هارون ته ووایه چه خپل لاس اوږد کړه له خپلې همسا سره په

سیندونو او په ولي او په ډنډونو چندخي دَ مصر په زمکه باندِ بهر
۶ را وخېژوه ۶ نو هارون خپل لاس دَ مصر په اوبو باندِ اوږد کړ
۷ او چندخي را وختلي او دَ مصر زمکه ئي پټه کړه ۷ او دغه سي کار
جادوګرانو په خپل جادو سره وکړ چندخي ئي دَ مصر په زمکه باندِ
۸ وخېژولي ۸ نو فرعون موسیٰ او هارون را وبلل او وني ویل چه یَهْوَهْ
ته زارِي وکړئ چه چندخي له ما نه او خما له قام نه لري کړي او
۹ زه به امت پرېږدم چه یَهْوَهْ له قرباني وکړي ۹ نو موسیٰ فرعون ته
ووِ چه ستا جلال دِ په ما وشي کم وقت ستا دَپارَ او ستا دَ نوکرانو
دَپارَ او ستا دَ قام دَپارَ زارِي وکړم چه چندخي له تا نه او ستا
له کورونو نه ورکي شي لیکن هغه به تش په دریاب کښ پاتي شي
۱۰ ۱۰ نو هغه ووِ چه صبا ته - ده ووِ چه هم ستا دَ خبري په شان دِ
وشي چه ته پوه شي چه دَ یَهْوَهْ خموږ دَ الله په شان هیڅوک نشته
۱۱ ۱۱ نو چندخي به لري شي له تا نه او ستا له نوکرانو نه او ستا له
۱۲ قام نه لیکن فقط په دریاب کښ به پاتي شي ۱۲ بیا موسیٰ او هارون
دَ فرعون له خنګَ لاړل او موسیٰ خداوند ته ناري وکړي دَ هغو چندخو
۱۳ له سببَ چه ئي په فرعون راوستلي وي ۱۳ او خداوند دَ موسیٰ دَ ویلو
۱۴ په شان وکړه نو چندخي دَ کورونو او دَ کلو او له پټو نه ومړلي ۱۴ او
هغوي هغه یو ځاي کړي ډیرئ ډیرئ ئي جوړي کړي او زمکه بدبویه
۱۵ شوه ۱۵ او چه فرعون ولید چه معطلِي وشوه نو خپل زړه ئي سخت
کړ او هغو ته ئي غوږ کښېښي نه ښود لکه چه یَهْوَهْ ویلي وُو
۱۶ ۱۶ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه هارون ته ووایه چه خپله همسا
اوږده کړه او دَ زمکي خاوري ووهه چه دَ مصر په ټوله زمکه کښ
۱۷ کُني شي ۱۷ دوي هم دغه سي کار وکړ- هارون خپل لاس له خپلي
همسا سره اوږد کړ او دَ زمکي خاوري ئي ووهلي نو په سړو او په
چارپایانو باندِ کُني شول- دَ مصر په تمام ملک کښ دَ زمکي خاوري

کُنِي شولي ۱۸ او جادوګرو هم دغه سي کار وکړ په خپل جادو سره چه ۱۸
سپږي کُنِي وباسِي ليکن توان ئې نه وه او کُنِي په سړو او په چارپايانو
وُو ۱۹ نو جادوګرانو فرعون ته ووِيل چه دا دَ الله ګوته ده - او دَ فرعون ۱۹
زړه سخت شه او دوئ ته ئې غوږ کښې نه ښود لکه چه خداوند ويلي وُو
۲۰ نو خداوند موسیٰ ته ووِيل چه صبا وختِي پاسه او دَ فرعون ۲۰
دَ وړاندِ ودرېږه ګوره هغه اوبو له راوځِي او ور ته ووايه چه
خداوند داسِي وائِي چه زما امّت پرېږده چه زما عبادت وکړِي ۲۱ او ۲۱
که ته زما قام نه پرېږدي نو ګوره و به لېږم په تا او هم ستا په نوکرانو
او ستا په قام او ستا په کورونو کښې رنګارنګ ماشي چه دَ مصريانو
کورونه او هم هغه زمکه چه چرته دوئ وِي په ماشو به ډکه شِي
۲۲ او زه به په هغه ورځ کښې دَ جوشن زمکه چه په کښې زما ۲۲
قام اوسِي بيله کړم چه ماشِي هلته نه وِي دَدې دَپارَه چه ته پوه
شي چه په زمکه کښې خداوند زه يم ۲۳ او دَ خپل قام او ستا دَ قام ۲۳
تر مينځ به جدائِي راولم- دا نښانه به صبا وِي ۲۴ نو خداوند هم دغه سي ۲۴
کار وکړ- نو دَ فرعون په کور کښې او دَ هغه دَ نوکرانو په کورونو کښې
دَ ماشو لوي غول راغي او دَ مصر په ټوله زمکه کښې ډېر ماشي
راغلل- زمکه خرابه شوله دَ ماشو له کبلَ ۲۵ نو فرعون موسیٰ او هارون ۲۵
راوبلل او وِئې ويل چه تاسو لاړ شئ خپل الله له په زمکه کښې
قرباني وکړئ ۲۶ نو موسیٰ ووِيل چه داسي کول مناسب نه دِي ځکه چه ۲۶
مونږ دَ يَهوَه خپل الله دَپارَه دَ مصريانو مکروه څيز به قرباني کړو آيا مونږ
دَ مصريانو مکروه څيز دَ هغو دَ سترګو دَ وړاندِ قرباني کړو څه؟ نو هغوي
به مونږ په ګټو و نه ولِي څه؟ ۲۷ مونږ به دَ درېو ورځو په منزل بيابان ۲۷
ته لاړ شُو او قربانِي به وکړُو يَهوَه زمونږ الله له لکه چه هغه ځنګه
مونږ ته ووائِي ۲۸ نو فرعون ووِيل چه زه به تاسو پرېږدم چه تاسو قربانئ ۲۸
وکړئ يَهوَه خپل الله له په بيابان کښې ليکن تاسو ډېر لري مه ځئ

۲۹ څما دِپارَ زارِي وکړِئ ۲۹ نو موسیٰ ووِ چه ګوره زه ستا له څنګ
ووزم او یَهُوَه ته به زارِي وکړم چه له فرعون نه او دَ هغه له نوکرانو
نه او دَ هغه له قام نه ماشِي صبا لرِي شِي لیکن چرِي داسي نه وِيَ
چه فرعون بیا چل وکړِي چه قام پرِ نه بدِي چه لاړ شِي دِپارَ دَ قربانِيُ
۳۰ یَهُوَه له ۳۰ نو موسیٰ دَ فرعون له څنګ لاړ شه او خداوند ته ئِي
۳۱ زارِي وکړه ۳۱ نو خداوند دَ موسیٰ له خبرِي په شان ئِي کار وکړ- نو
ماشِي له فرعون نه او دَ هغه له نوکرانو او دَ هغه له قام نه ئِي لرِي
۳۲ کړل- یو پاتي نه شه ۳۲ لیکن فرعون دا وار هم خپل زړه سخت کړ
هغه خلق ئِي پرِ نه ښودل *

# نهم باب

۱ ۱ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه فرعون له لاړ شه او ورته ووایه چه
داسي وایِي یَهُوَه دَ عبرانیانو الله چه څما قام پرېږده چه هغوي څما
۲ عبادت وکړِي ۲ که چرِي ته دَ هغوي دَ پرېښودو انکار وکړِي او سختِي
۳ ونیسي ۳ نو ګوره ستا دَ بیدیا په څارِوِي په آسونو او په خرو او
په اوښانو او په غوایانو او په ګډو بانِد به دَ خداوند لاس وِي ډېره
۴ لویه وبا به وِي ۴ او خداوند به دَ اسرائیل څارِوِي او دَ مصر څارِوِي
۵ جدا کړِي- نو دَ بني اسرائیلو له ټولو نه به هیڅ شي و نه مرِي ۵ او
خداوند یو وقت مقرّر کړ وِئ چه صبا به خداوند دا کار په زمکه کښ
۶ وکړِي ۶ او خداوند بله ورځ هم هغه سي کار وکړ نو دَ مصر ټول
۷ څارِوِي ومړل او دَ بني اسرائیلو له څارِوِي نه یو و نه مړ ۷ او
فرعون ولیګل او ګوره چه دَ اسرائیلو له څارِوِي نه یو هم نه وه مړ
لیکن دَ فرعون زړه سخت شه او هغه قام ئِي پرِ نه ښود
۸ ۸ نو بیا خداوند موسیٰ او هارون ته ووِ چه تاسو دکي لپي دَ
تناره ایرِي واخلِئ او هغه دِ موسیٰ دَ فرعون دَ وړاندِ آسمان ته
۹ وغورزوِي ۹ چه هغه دَ مصر په ټوله زمکه بانِد دوړه شِي- نو دَ مصر

په ټوله زمکه کښ په سړو او په څارويو باندِ ننګئِ چه دَ هغي نه
۱۰ تنزاکي وخيژي ۱۰ نو دوي دَ تناره ايري واخستي او دَ فرعون دَ وړاندِ
ودريدل او موسیٰ هغه آسمان ته والوزولي نو په سړو په څارويو
۱۱ باندِ ننګئِ چه دَ هغي نه تنزاکي وختي ۱۱ او جادوګر دَ ننکو له کبلَ دَ
موسیٰ دَ وړاندِ ونه دريدي شول ځکه چه په جادوګرو او په ټولو
۱۲ مصريانو ننګئِ وي ۱۲ ليکن خداوند دَ فرعون زړه سخت کړ او دوي ته
يُ غوږ کښي نه ښود لکه چه خداوند موسیٰ ته ويلي وُو
۱۳ ۱۳ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه صبا وختِي پاسه او دَ فرعون
دَ وړاندِ ودريږه او ورته ووايه چه يَهُوَهْ دَ عبرانيانو الله داسي وايي
۱۴ چه خما قام پريږده چه خما عبادت وکړي ۱۴ ځکه چه زه به دا وار
ټول افتونه خپل ستا په زړه او ستا په نوکرانو او ستا په قام در
وليږم چه ته پوه شي چه خما په شان په ټوله زمکه کښ هيڅوک نشته
۱۵ ۱۵ او که ما خپل لاس اوږد کړ او ته او ستا قام م په وبا سره
۱۶ وواهه - نو ته به له زمکي نه هلاک شي ۱۶ وليکن دَ دي دپارَ مِ
ودرولي يي چه زه تا ته خپل قوّت وښيم او خما نوم په ټوله زمکه
۱۷ کښ مشهور شِي ۱۷ تر اوسَ پوري خما په قام تکبّر کوي څه ؟
۱۸ چه نه يُ پريږدي ۱۸ کوره صبا به زه دا وقت په مصر باندِ داسي غټه
غټه ږلۍ چه له وقتَ دَ آباديدو دَ مصر نه تر اوسَ پوري په
۱۹ مصر نه وِي ودريدلي وورم ۱۹ نو اوس وليږه او خپل څاروِي او
هر څه چه په ميدان کښ دِيْ جمع کړه - ځکه چه هر سړي او څاروِي
چه په ميدان کښ بياموند شي او کور ته را نه وستي شِي نو
۲۰ ږلۍ به پې پريوزي او هغوي به ومرِي ۲۰ دَ فرعون په نوکرانو کښ هغه
چه دَ خداوند له کلامَ وبريدل خپل نوکران او څاروِي يُ کورونو ته
۲۱ را وزغلول ۲۱ او هغه چه دَ خداوند په خبره باندِ باور ونه کړ خپل نوکران
او خپل څاروِي يُ په ميدان کښ پريښودل

۲۲ ۲۲ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه خپل لاس آسمان طرف ته اوږد
کړه چه دَ مصر په ټوله زمکه په سړِي او په څاروي او په هر بوټي
۲۳ دَ پټي دَ مصر په زمکه کښ ږلۍِ ووريږي ۲۳ نو موسیٰ خپله همسا
آسمان طرف ته اوږده کړه نو خداوند ګړيدل او ږلۍِ وليږل - او په زمکه
۲۴ باندِ اور ګرزيده - او خداوند دَ مصر په زمکه باندِ ږلۍِ ووروله ۲۴ او
داسي ږلۍِ ووريده چه په مينځ کښ ئې اور نغښتي وه په داسي زور
سره چه داسي دَ مصر په تمام ملک کښ له هغه را په هسته چه
۲۵ آباد شوي وه نه وه شوي ۲۵ او ږلۍِ دَ مصر په تمام ملک کښ هغه
څوک چه په ميدان کښ وُو څه سړِي او څه څارِوي ټول ئې ووهل
۲۶ او ږلۍِ دَ پټي هر بوټي وواهه او ونې ئې دَ پټو ماتي کړلي ۲۶ صرف
دَ جوشن په زمکه کښ چه بنِي اسرائيل وُو هغي کښ ږلۍِ نه وَه
۲۷ ۲۷ نو موسیٰ او هارون فرعون را وبلل او هغو ته ئې ووِ چه ما دا وار
۲۸ ګناه وکړه يَهْوَهْ صادق دي او زه او خما قام ګناهکار يُو ۲۸ يَهْوَهْ ته
زارِي وکړه چه بس نور دِ ګړيده او ږلۍِ نه وِي او تاسو به رخصت
۲۹ کړم نور دلي مه اوسيِ ۲۹ نو هغه ته موسیٰ ووِ چه زه له ښهر نه
ووځم نو خداوند ته به لاسونَ ښواره کړم نو ګړيده به موقوف شِي او
۳۰ ږلۍِ به هم نوره و نه شِي چه ته پوه شي چه زمکه دَ خداوند ده ۳۰ ليکن
ته او ستا نوکران چه دِي زه پوهيږم چه تاسو به تر اوسَ پورې
۳۱ دَ خداوند الله نه نه ويريږئِ ۳۱ نو سڼِ او اوربوشي ووهلي شوي ځکه
۳۲ چه اوربوشي په وږي وي او سڼ په غوټئ وُو ۳۲ او غنم او توږ غنم
۳۳ ئې ونه وهل ځکه چه لوي شِوي نه وُو ۳۳ نو موسیٰ دَ فرعون له
حضوره له ښهرَ ووت خداوند ته ئې لاسونَ خواره کړه نو ګړيده او
۳۴ ږلۍِ موقوف شول - او نور باران په زمکه و نه وريده ۳۴ ليکن هر
کله چه فرعون وليده چه باران او ږلۍِ او ګړيده موقوف شول -
نورَه ئې هم خطا وکړه او هغه او دَ هغه نوکرانو خپل زړونَ سخت

کړل ۳۵ او دَ فرعون زړه سخت شه هغه هرګز بني اسرائیلو ته لکه ۳۵
چه خداوند ویلي وُو دَ موسیٰ په وسیلي سره دَ تلو رخصت ورنه کړ

# لسم باب

آ بیا خداوند موسیٰ ته ووِ چه فرعون له لاړ شه چه ما دَ هغه زړه ۱
او دَ هغه دَ نوکرانو زړونه سخت کړي دِي دَ دي دَپارَه چه زه داخپلي
نښي په هغه ښکاره کړم ۲ او چه ته خپل زوي ته او نوسي ته ۲
څه کارونه چه ما په مصر باندِ کړي دِي او څما نښي چه ما په هغوي کښ
ښکاره کړي دِي واوروي چه تاسو پوه شيْ چه خداوند زه یم ۳ نو موسیٰ ۳
او هارون فرعون له راغلل هغه ته ئي ووِ چه یَهوَهْ دَ عبرانیانو
الله داسي وايِي چه تر کومَ پوري به ته له عاجزي کولو نه څما دَ
وړاندِ انکار کوي- څما قام پرېږده چه څما عبادت وکړي ۴ او که ته ۴
څما دَ قام له پرېښودو انکار وکړي نو کوره صبا به زه ستا په ټوله
زمکه باندِ ملخ راولم ۵ نو دَ زمکي مخ به داسي پټ کړي چه زمکه ۵
به نه ښي لیدي- او هغه چه بچ شوي دي هان هغه چه له دِږِ
نه تاسو له بچ شوِي دِي و به خوري- او هره ونه چه په پټو کښ
ستاسو دَپارَ زرغونيږي و به خوري ۶ او په هغوي به ستا کورونه او ۶
ستا دَ ټولو نوکرانو کورونه او دَ ټولو مصریانو کورونَ ډک کړي
شي لکه چه ستا پلرونو او ستا نیکونو له هغه ورځي نه چه په
دي زمکه باندِ وُو تر ننه ورځي پوري لیدلي نه وِي- نو هغه وګرځیده
او دَ فرعون له څنګ لاړ شه ۷ او دَ فرعون نوکرانو ووِ چه تر کومَ پوري ۷
به دا سړي څمونږ دام وِي- هغه خلق پرېږده چه دَ یَهوَهْ خپل الله
عبادت وکړي تر اوسَ پوري ته لا خبر نه يِي چه مصر اوجاړ شه
۸ نو موسیٰ او هارون بیا فرعون له راوستي شو او هغه ور ته ووِ ۸
چه څئ دَ یَهوَهْ خپل الله عبادت وکړي مګر څوک څوک تلونکي دِي.
۹ موسیٰ ووِ چه مونږ به له خپلو ځوانانو او له خپلو بوډاګانو او له ۹

خپلو ځامنو او له خپلو لوڼو او له خپلو کنډکونو او له خپلو کوهارو
۱۰ سره ځو ځکه چه مونږ له ضرور دي چه دَ يَهُوَهْ اختر وکړُو ۱۰ نو
هغه هغوته ووِ چه يَهُوَهْ له تاسو سره دِ داسي وِي ځکه چه زه تاسو
او ستاسو وړوکو لره رخصت درکړم - وګورئ ځکه چه ستاسو دَ وړاندِ
۱۱ بدِي دَه ۱۱ داسي نه دَه نو تاسو نارينه لاړ شئ او دَ يَهُوَهْ عبادت وکړئ
ځکه چه ستاسو آرزو دغه ده - نو هغوي دَ فرعون له حضوره وشړلِي شول
۱۲ ۱۲ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه خپل لاس دَ ملخو دَپارَ دَ
مصر په زمکه باندِ اوږد کړه چه هغوي دَ مصر په زمکه راوخيژي او
ټول شنه دَ زمکه هم ټول چه له ږلِئ نه پاتي شوي دِي وخوري
۱۳ ۱۳ نو موسیٰ دَ مصر په زمکه باندِ خپله همسا اوږده کړه نو
خداوند دَ نورخاته له لوري په زمکه باندِ يو باد ټوله ورځ او ټوله شپه
۱۴ والوزوه - او چه صبا شه نو دَ نورخاته باد ملخ راوړل ۱۴ او ملخ
دَ مصر په ټوله زمکه باندِ راوختل او دَ مصر په ټوله زمکه باندِ
کښيناستل او داسي خراب وُو چه نه داسي ملخ پخوا چري راغلِي وُو
۱۵ او نه به له هغو نه پس داسي راشِي ۱۵ دَ ټولِي زمکي مخ ئي داسي
پټ کړ چه زمکه تياره شوه او هغو دَ زمکي ټول وابښه او دَ ونو ټولي
ميوي چه څه ږلِئ پريښي وِي وخوړلِي دَ مصر په ټوله زمکه کښ
۱۶ هيڅ شين شي خواه دَوني خواه دَ پټي وابښه پاتي نه شه ۱۶ نو
فرعون موسیٰ او هارون زر راوبلل او ورته ئي ووِ چه ما دَ يَهُوَهْ
۱۷ ستاسو دَ الله او ستاسو ګناه کړي ده ۱۷ نو دا وار ځما ګناه وبخښئ
او ځما دَپارَ خپل يَهُوَهْ ته زارِي وکړئ چه له ما نه فقط دا مرګ
۱۸ لري کړي ۱۸ نو هغه له فرعون نه لاړ شه او زارِي ئي خداوند ته وکړه
۱۹ ۱۹ نو خداوند دَ نورپرېواته له طرفه زورور باد را والوزوه چه ملخ ئي
يو وړل او په قلزم دریاب کښ ئي وغورزول - دَ مصر په ټوله زمکه
۲۰ کښ يو ملخ هم پاتي نه شه ۲۰ ليکن خداوند دَ فرعون زړه سخت کړ

چه هغه بني اسرائيلو له رخصت ورنه کړ
۲۱ ۲۱ بيا خداوند موسیٰ ته ووِ چه خپل لاس آسمان ته اوږد کړه
۲۲ چه دَ مصر په زمکه باندِ تياره شي داسي تياره چه مسح کيږي ۲۲ نو موسیٰ
خپل لاس آسمان ته اوږد کړ نو تر دريو ورځو پوري دَ مصر په زمکه
۲۳ کښ ډيره تياره وه ۲۳ هغوي يو تر بله نه ليده او نه څوک تر دريو ورځو
له خپلَ ځايَ پورته کيده ليکن دَ ټولو بني اسرائيلو په ځايونو کښ رڼا وه
۲۴ ۲۴ نو فرعون موسیٰ وباله او ور ته ئي ووِ چه تاسو ځئي دَ يَهُوَهْ
عبادت وکړئِ فقط ستاسو کنډکونَ او ستاسو گوهاري دِ دلي وِي
۲۵ معصومان دِ هم له تاسو سره ځي ۲۵ موسیٰ ووِ چه تا له ضرور دي
چه ته څموږ په لاس کښ ذبحي او دَ سولو قربانئِ راکړي چه موږ
۲۶ ئي دَ يَهُوَهْ خپل الله دَپارَ قرباني کړو ۲۶ څموږ څاروي به هم له
موږ سره ځي يو سُم به هم پاتي نه شي- ځکه چه موږ لره ضرور
دي چه له هغوي نه دَ يَهُوَهْ خپل الله دَ عبادت دَپارَ واخلو او
تر هغه پوري چه هلته موږ لاړ نه شُو موږ نه پوهيږو چه په
۲۷ څه دَ يَهُوَهْ عبادت وکړو ۲۷ ليکن دَ فرعون زړه خداوند سخت کړ او
۲۸ هغوي پري نه ښوده ۲۸ او فرعون هغه ته ووِ چه له ما نه ځَه او
خبردار اوسه بيا څما مخ مه وينه ځکه چه هره هغه ورځ چه ته څما
۲۹ مخ ووينيي نو مړ به شي ۲۹ نو موسیٰ ووِ چه ښَه دِ وُوِ زه به بيا
ستا مخ و نه وينم +

## يولسم باب

۱ ۱ او خداوند موسیٰ ته ووِ چه زه به په فرعون او په مصر باندِ يوه
بله بلا هم راولم پس له هغي نه به هغه تاسو لره له دي ځايَ رخصت
درکړي او هغه وقت چه هغه تاسو لره رخصت درکړي نو يقين دي
۲ چه تاسو به په ټيل وهلو له دي ځاي نه وشړي ۲ نو اوس خلقو ته
په غوږ کښ ووايه چه هر سړي دِ له خپل گاونډي او هره ښځه دِ

له خپلي ګاونډيانو نه دَ سپينو زرو کالي او دَ سرو زرو کالي وغواړي
۲ ۳ او خداوند قام له دَ مصريانو په نظر کښ نعمت ورکړ- او دا سړي موسیٰ
هم دَ مصر په زمکه کښ دَ فرعون دَ خادمانو په نظر کښ او دَ قام په
نظر کښ درونډ وه

۴ ۴ او موسیٰ ووِ چه يَهْوَهْ داسي وائي چه نيمي شپې ته به زه دَ مصر
۵ په مينځ کښ لاړ شم ۵ او دَ مصر په ملک کښ به هر وړونبي پيدا شوي
دَ فرعون له وړونبي پيدا شوِي نه چه هغه په کرسئِ کښيني دَ وينځي تر
وړونبي پيدا شوِي پوري چه دَ ميچني دَ وروستو کښيني سره دَ ټولو څاروو
۶ دَ وړونبيو پيدا شويو به ومري ۶ او دَ مصر په ټوله زمکه بانګ به داسي
۷ لويه ژړا وِي چه داسي نه چري وه او نه به چري بيا وِي ۷ ليکن په ټولو
بني اسرائيلو به يو سپي هم خپله ژبه ونه خوزوِي نه په سړِي او نه
په څاروِي چه تاسو پوه شئِ چه خداوند څه رنګ دَ مصريانو او دَ
۸ اسرائيل جدائي کوِي ۸ او دا ستا ټول نوکران به ما ته راکوز شِي او
ما ته به سجده وکړِي او وبه وائي چه ته او ټول خلق چه تا پسي ځي
اووځئِ - پس له هغه به زه ووځم- بيا هغه له فرعون نه په
ډير قهر بهر ووت

۹ ۹ او خداوند موسیٰ ته ووِ چه فرعون به ستا خبره وانه وري چه
۱۰ زما عجائبات دَ مصرَ په زمکه کښ ډير شِي ۱۰ موسیٰ او هارون به
دَ فرعون دَ وړاندِ دا عجائبات ښکاره کول او خداوند دَ فرعون زړه سخت
کړ او بني اسرائيل ئي له خپلَ ملکَ بهر برِنه ښول +

## دولسم باب

۱ ۱ بيا خداوند موسیٰ او هارون ته دَ مصر په زمکه کښ خبري وکړي
۲ وئي ويل ۲ چه دا مياشت به ستاسو وړونبئِ دَ مياشتو وِي او دا به
۳ ستاسو دَ کال وړونبئِ مياشت وِي ۳ دَ اسرائيل ټول جماعت ته
خبري وکړئِ ووائئِ چه ددي مياشتي په لسمه ورځ دِ هر څوک يو

کډوري موافق دَ کورونو دَ خپلو پلرونو کورسپي دِ یو کډوري واخلي
۴ او که کوم کور دَ کډورِي دَپارَ ورکي وِي نو دَ هغه دَکور نزدي ۴
ګاونډِي دِ موافق دَ سرِو په شمار دِیو واخلِي او تاسو هرڅوک
برابر له خپلَ خوراکَ سرهِ په کډورِي کښ حساب وکړئِ ۵ ستاسو ۵
کډوري دِ بيعیبَ وِي او یو کلني نر دِ وِي له کډو یا له بزو نه ئي
واخلئِ ۶ او تاسو ئي دَدي میاشتي تر څوارلسمي پورِي وساتئِ او دَ ۶
اسرائیلَ دَ جماعت ټول مجلس دَ نماښام په وخت کښ دِ حلال کړِي
۷ او هغوي دِ وینې واخلِي او په کورونو کښ چه په کښ دوي ئي ۷
خورِي دَ هغه ور په دواړو درشلو او په پورته درشل باندِ دِئي ووِلي
۸ او هغوي دِ هم هغَه شپه هغه غوښي ورتي کړِي له پتیري ډوډِئ ۸
سره دِ ئي وخورِي له ترخي ترکارئِ سره دِ ئي وخورِي ۹ او هغه دِ ۹
کچّه او په اوبو کښ یشولي هیڅ‌ري نه خورِي مګر ورِته کړِي شوي
به ئي خورِي سر او پښو دَ لرمون سره ۱۰ او تر صبا پورِي په هغي کښ ۱۰
څه شي مه پرېږدئِ او که تر صبا پورِي له هغي نه څه پاتي شه
نو په اور ئي وسیزئِ ۱۱ او تاسو هغه داسي خورئِ چه ملا تړلي ۱۱
او پڼړي په پښو کړِي خپله همسا په خپل لاس کښ اخستي او تاسو
هغه زر وخورئِ چه دَ خداوند فصح ده ۱۲ ځکه چه زه به په دغه شپه ۱۲
دَ مصر په ملک تیر شم او ټول ورونبي پیدا شوِي دَ مصر په
ملک کښ خواه دَ انسان خواه دَ ځارویو به ووژنم او دَ مصر په ټولو
خدایانو به خپل حکم جارِي کړم چه زه یَهُوَهْ یم ۱۳ او وینې به ۱۳
ستاسو دَپارَ نښـــه وِي په هغه کورونو چه چرته تاسو ئِ او زه
چه وینو ته وګورم نو له تاسو نه به تیر شم او هر کله چه دَ مصر
ملک ووهم نو وبا به په تاسو نه راځِي چه تاسو هلاک کړِي ۱۴ او ۱۴
دغه ورځ به ستاسو دَپارَ یادګارِي وِي او تاسو دَ خداوند دَپارَ اختر
وکړئِ او ستاسو په پیړو کښ به دا اختر په قانون سره تر ابدَ پورِي

۱۵ کوِنئ ۱۵ تر اوۀ ورځو پورې پتيرې ډوډئ خورئ تاسو هم له وړومبئ ورځې
نه له خپلو کورونو خمبيره لرې کړئ ځکه چه هر چا چه له وړومبئ ورځې
نه تر اوومې ورځې پورې خمبيره وخوړه نو هغه سړې به له اسرائيل نه
۱۶ پرېکړې شي ۱۶ او ستاسو دپارَ به په وړومبي ورځ پاک مجلس وي او په
اوومه ورځ به هم پاک مجلس وي په دې کښ به هيڅ قسم کار نه شي
۱۷ کولې بې له دې چه هر سړې څه وخوري هم دغه به کولې شي ۱۷ او تاسو
دَ پتيرې ډوډئ دا اختر ياد لرئ ځکه چه په دغه ورځ مِ ستاسو لښکرې
له مصر نه بهر کړې دي له دې سببَ تاسو دا ورځ به خپلو پيړو کښ
۱۸ ترابدَ پورې په قانون سره ياده لرئ ۱۸ دَ وړومبئ په څوارلسمې ورځې دَ مياشتې
دَ نمابنام نه تر يوويشتمې ورځې دَ مياشتې دَ نمابنامَ پورې تاسو پتيرې
۱۹ ډوډئ خورئ ۱۹ تر اوۀ ورځو پورې چه ستاسو په کورونو کښ خمبيره بيا
نه موندې شي ځکه چه هر څوک چه خمبيره شوې وخوري دَ اسرائيل له
ټولي نه به پرېکړې شي که هغه مسافر وي او که پيدائښت ئې په هغه
۲۰ زمکه کښ شوې وي ۲۰ تاسو هيڅ شې خمبيره شوې مه خورئ تاسو په
خپلو ټولو کورونو کښ پتيرې ډوډئ خورئ
۲۱ ۲۱ نو موسیٰ دَ اسرائيل ټول سپين‌ږيرې راوبلل او هغو ته ئې
ووِ چه را وکاږئ او دَ خپلو خانونو دپارَ دَ خپلو خيل‌خانو په موافق
۲۲ کډورې واخلئ او فسح حلاله کړئ ۲۲ او تاسو دَ زوفا يوه ګوډه واخلئ
او په وينو کښ چه په لوښي کښ دي غوپه کړئ او په پورته درشلو
او په دواړو درشلو باندِ ئې وينه چه په لوښي کښ وي ولګوئ-او له تاسو
نه دِ هيڅوک تر صبا پورې دَ خپل کور له دروازې نه نه ووځي -
۲۳ ۲۳ ځکه چه خداوند به تير شي دَ مصريانو دَ وهلو دپارَ او چه
خداوند پورته په درشلي باندِ او په دواړو درشلو باندِ وينه ووينې
نو خداوند به له دروازې نه تير شي او هلاکوونکي به پرې نږدي چه دننه
۲۴ درشي ستاسو په کورونو کښ دَ وهلو دپارَ ۲۴ او دا خبره به وساتئ

۲۵ په قانون دَ ځان دَپارَ او دَ ځامنو دَپارَ تر ابده پوري ۲۵ او دَ ېي به وِيِ
چه هر کله چه تاسو په هغه زمکه کښ چه خداوند لي موافقه له خپلي
وعدي سره تاسو له درکړي داخل شيُ نو تاسو به دَ دي عبادت
۲۶ ساتنه کويُ ۲۶ او داسي به وِيِ چه هر کله چه ستاسو اولاد تاسو ته
۲۷ ووايِي چه ستاسو له دي عبادت نه څه مراد دي ۲۷ نو تاسو به ورته
ووايِئ چه دا دَ فسح قرباني دَه دَ خداوند چه په مصر کښ دَ بني اسرائيلو
له کورونو نه تېر شه هغه وقت چه مصريان ووهل او ځمونږ کورونَ
۲۸ ئي وساتل۔ نو قوم سرونَ کښته کړل او سجدي ئي وکړې ۲۸ او بني اسرائيل
لاړل او دغه شان ئي وکړل لکه چه خداوند موسىٰ او هارون ته وِيلي وُو دغه
شان ئي وکړل
۲۹ ۲۹ او داسي وشوه په نيمې شپي چه خداوند ټول ورومبي پيدا شوِي
دَ مصر په ملک کښ ووهل دَ فرعون له ورومبي پيدا شوي نه چه
په خپل تخت ناست وه تر ورومبي پيدا شوِي دَ قيدِي پوري چه په
۳۰ قيدخانه کښ وه او ټول ورومبو پيدا شويو دَ څارويو ۳۰ او فرعون
دَ شپي پورته شه هغه او دَ هغه ټول نوکران او ټول مصريان او په
مصر کښ لوي ويره ځکه چه هيڅ کور نه وه چه هلته يو مړ نه وه
۳۱ ۳۱ نو موسىٰ او هارون ئي دَ شپي راوبلل او ورته ئي ووِ چه پورته
شيُ او ځما له قام نه ووځيُ۔ تاسو او بني اسرائيل او لاړ شيُ او لکه
۳۲ چه تاسو وِيلي دِي دَ يَهوَه عبادت وکړيُ ۳۲ او خپل کندکونَ او
غويان هم واخليُ لکه چه تاسو وِيلي دي۔ او روان شيُ او ځما دَپارَ
۳۳ هم برکت وغواړيُ ۳۳ او مصريانو به په هغو خلقو بانْدِ زور کاوه چه
شغوي دَ مصر له ملک نه زر بهر کړي ځکه چه هغوي ووِيل چه
۳۴ مونږ ټول مړه يو ۳۴ او خلقو اخلِي اوړه پخوا دَ هغو له خمبيره کيدو
۳۵ نه واخستل بنانکونو ئي په زړوکو کښ تړلي شوِي په اوږو بانْدِ ۳۵ او
بني اسرائيلو دَ موسىٰ دَ وِيلو په موافق کار وکړ۔ هغوي له مصريانو

نه دَ سپينو زرو کالِي او دَ سرو زرو کالِي او زروکِي يُ په سوال وغوښته۔
٣٦ ٣٦ او خداوند هغو خلقو لره دَ مصريانو په سترگو کښې داسي بختا ورکړه
چه هغوي لره ئي ورکړه هغه څه چه ئي وغوښته او هغوي مصريان لوټ کړل
٣٧ ٣٧ او بني اسرائيلو له رعمسيس تر سُکّوت پوري کوچ وکړ۔
٣٨ پلي سړِي بي له وړوکو نه شپږ لکو ته نزدي وُو او ډير بيگانه خلق
٣٩ هم له دوي سره وختل. او گندکونه او گوهاري ډير زيات څاروِي ٣٩ او
هغوي له اخلو اوړو نه چه له مصر نه ئي وکښلِي وُو پتيري ډوډئِي
پخي کړي۔ ځکه چه هغه لا خمبيره شوِي نه وُو له دي سبب چه هغوي
له مصر نه په تيل وهلو وکښلِي شوِي وُو او حصار نه شول او نه
٤٠ ئي څه خوراک تيار کړ ٤٠ او استوږنه دَ بني اسرائيلو چه په مصر کښې
٤١ اوسيدونکي وُو ديرش دَپاسَ څلور سوَ کالَ وه ٤١ او ديرش دَ پاسَ
دَ څلور سوو کالو په آخر کښې داسي وشوه چه هم په هغه ورځ دَ
٤٢ خداوند ټول فوځونَ له مصر له زمکه نه ووتل ٤٢ دا دَ خداوند دَپارَ دَ
يادولو شپه وه چه دَ مصر له زمکي نه ئي بهر را وويستُو۔ دا دَ خداوند
هغه شپه دَه چه هغي لره مناسب دِي چه ټول بني اسرائيل ئي په
خپلو پيړو کښې ئي ياده ولرِي
٤٣ ٤٣ بيا خداوند موسیٰ او هارون ته ووِ چه دَ فسح قانون دا دي
٤٤ چه هيڅوک مسافر دِ هغه نه خورِي ٤٤ ليکن دَ هر چا زرخريد مريي
٤٥ چه هغه ئي سنت کړِي وِي. نو له هغه نه دِ ئي خورِي ٤٥ مسافر
٤٦ او مزدور دِ ئي نه خورِي ٤٦ په يو کور کښې دي وخوړي شِي دَ هغي غوښه
دِ بهر له کوره نه شِي وړلي او تاسو به له هغي نه هډوکې مات نه
٤٧ ٤٨ کړئ ٤٧ ټول جماعت دَ بني اسرائيلو دِ په دې عمل وکړي ٤٨ او که څوک
مسافر له تاسو سره اوسِي او دَ خداوند فسح کوِي نو ټول نارينه دِ ئي
سنت کړي شِي نو هله دِ نزدي شي او و دِئي کړي هغه چه په زمکه
کښې پيدا شوي وِي ځکه چه نا سنت کړي شوي سړِي به له هغه نه خورِي

۴۹ وَ۴۹ دَ وطني او دَ مسافر چه تاسو سره اوسي يو شريعت به وي
۵۰ ۵۰ بتولو بني اسرائيلو هغه‌سي كار وكړ لكه چه خداوند موسیٰ او
۵۱ هارون ته ويلي وُو- هم هغه‌سي ئي وكړه ۵۱ او داسي وشوه چه هم په
هغه ورځ خداوند بني اسرائيل دَ هغوي له لښكرو سره دَ مصر له
زمكه نه بهر وكښل *

## ديارلسم باب

۲-۱ ۱ او خداوند موسیٰ ته خبري وكړي و ئي ويل ۲ چه ټول وړونبي پيدا
شوي ځما دَپارَ پاک كړه- هر پرانتونكي دَ رَحِم چه په بني اسرائيلو كښ
دي څه سړي او څه ځاروي ځما دي
۳ ۳ او موسیٰ خلقو ته ووِ چه تاسو دا ورځ چه په دي كښ تاسو
له مصر نه دَ مريي‌توب له كور نه وتلي يئ چه خداوند تاسو په زورور لاس
له دي ځاي نه وكښلي يئ- هيڅ خمبيره ډوډئ دِ و نه خوري شي
۵-۴ ۴ تاسو دَ ابيب په مياشت كښ نن ورځ بهر وتلي يئ ۵ او داسي
به وي چه هر وقت چه تا خداوند دَ كنعانيانو او دَ حتّيانو او دَ اموريانو
او دَ حويانو او دَ يبوسيانو زمكي ته راولي چه ستاسو له پلرونو سره
ئي په قسم ويلي دي چه تا لره به ئي دركړي چه هلته پئَ او شات
۶ بهيږي نو ته به دي مياشت كښ دا عبادت وكړه ۶ دَ اوو ورځو پوري
۷ ته پتيره ډوډئ خوره- او په اومه ورځ به خداوند لره اختر وي ۷ پتيره
ډوډئ به اوه ورځي خوړي شي- او خمبيره ډوډئ دِ تا څخه و نه ليدي
شي- او نه دِ خمبيره ستا په ټول ملک كښ ستا دَ وراندِ ليدي
۸ شي ۸ او ته هغه ورځ خپل زوي ته ووايه چه دَ هغه له سبب چه
۹ خداوند ځما دَپارَ كړي وه چه زه له مصر نه راوتلي يم ۹ او دا به تا
څخه نښه ستا په لاس كښ او ستا دَ سترګو په مينځ كښ به يو يادګار
وي- چه دَ خداوند شريعت ستا په خوله كښ وي ځكه چه ته خداوند
۱۰ په زورور لاس له مصر نه وكښلي يي ۱۰ نو دا قانون به خپل وقت

کال په کال یاد لره
۱۱ ۱۱ او داسي به وشي چه هر کله چه خداوند تا دَ کنعانیانو زمکي
ته لکه چه هغه له تا سره او ستا له پلرونو سره قسم خوړلي دي
۱۲ بوزي او هغه تا له درکړي ۱۲ نو ته هغه ټول چه د رَحِم پرانتونکي دِي
دَ خداوند دَپارَ بیل کړه او هر ورونبي پیدا شوي دَ څاروو چه ستا دِي
۱۳ نارینه دَ خداوند دِي ۱۳ او دَ خره دَ ورونبي پیدا شوي په بدله کښ
کډ وري ورکړه - او که ته دَ هغه بدله نه ورکوې نو دَ هغه څټ مات
کړه - او ټول ورونبي پیدا شوي دَ انسان له ځامنو ستا نه بدله ورکړه
۱۴ ۱۴ او داسي به وشي چه هر کله چه ستا زوی پس نَه له تا نه تپوس
وکړي او ووايي چه دا څه دِي - نو ته هغه ته ووايه چه خداوند په زورور
لاس مونږ له مصر نه دَ مريي توب له کور نه بهر را وستي يُو -
۱۵ ۱۵ او داسي وشوه چه فرعون ځان سخت کړ ځمونږ دَ پريښودو دَپارَ
چه خداوند دَ مصر په ملک کښ ټول ورونبي پیدا شوي دَانسان ورنبي پیدا
شويو او دَ څاروو ورنبي پیدا شوي ووژلل له دي سببَ زه هغه ټول
نارینه چه دَ رَحِم پرانتونکي دِي دَ خداوند دَپارَ حلالوم او دَ خپلو ځامنو
۱۶ دَ ټولو ورونبو پیدا شويو بدله ورکړم ۱۶ او دا به ستا په لاس باندي
نښنه وِي او ستا دَ سترګو په مینځ کښ به تعویزونه وِي ځکه چه خداوند
په زورور لاس مونږ له مصر نه بهر راوويستو
۱۷ ۱۷ او هر کله چه فرعون هغه خلق پريښودل نو داسي وشوه
چه الله دَ فلسطینیانو د ملک په لاري اګر چه نږدي وه بو نه تله
ځکه چه الله ووې چه چري نه وِي چه خلق جنګ ووينې نو پښیمانه
۱۸ به شِي او مصرته به وجارووزِي ۱۸ بلکه الله خلق دَ قلزم درياب دَ
بیابان په لاري بوتله او بني اسرائيل وصله تړلي له مصر له زمکي نه
۱۹ وختل ۱۹ او موسیٰ دَ یوسف هډوکي له ځان سره واخستل ځکه چه
هغه بني اسرائيلو له سخت قسم ورکړي وه ويلي وُو چه الله به یقیناً

ستاسو خبر واخلي نو تاسو له دَلي نه ځما هډوکي له ځان سره
٢٠ يوسئ ٭ نو هغوي له سُکوټ نه کوچ وکړ او په ايثام کښ په غاړه دَ
٢١ بيابان ډيره شول ٢١ او خداوند به د ورځي دَ وريځي په ستنه کښ چه
هغوي ته لار وښيي او دَ شپي به دَاور په ستنه کښ چه هغوي ته
٢٢ رنړا وکړي دَ هغوي دَ وړاندِ ته - چه دوي به ورځ او په شپه ځي ٢٢ دَ
وريځي ستن به دَ ورځي او دَ اور ستن به دَ شپي دَ هغي خلقو له مخي
نه هيڅري نه لري کيده ٭

# څوارلسم باب

١-٢ ١ او خداوند موسیٰ ته خبري وکړي و ئي ويل ٢ چه بني اسرائيلو ته
واويه چه هغوي وګرځي او دَ فيهاحيروث په مخ کښ ډيره شي دَ
مجدل او دَ درياب په مينځ کښ دَ بعلِصفون په مخ کښ مخامخ دَ هغي
٣ دَ درياب په غاړه دِ ډيره وکړي ٣ او فرعون به دَ بني اسرائيلو په حق
کښ ووايي چه هغوي په زمکه کښ نښتي دي بيابان هغوي بند
٤ کړي دي ٤ او زه به دَ فرعون زړه سخت کړم چه هغه به په هغوي پسي
لاړ شي نو زه به په فرعون او دَ هغه په ټول لښکر باندِ خپله لويي
څرګنده کړم چه مصريان پوه شي چه خداوند زه يم - او هغوي هغه سي
٥ کار وکړ ٥ او دَ مصر بادشاه ته خبر وشه چه هغه خلق وتښتيدل
نو دَ فرعون او دَ هغه دَ خادمانو زړونه له هغو نه بدل شول - او هغو
٦ ووِ چه دا مونږ څه وکړل چه اسرائيل مو له خدمتګاريَ نه وکښل ٦ نو
٧ هغه خپل ګاډي طيار کړل او خپل خلق ئي له ځان سره واخستل ٧ او
هغه شپږ سوَ انږولي شوي ګاډي او ټول ګاډي دَ مصر واخستل - او
٨ سرداران په هغو ټولو باندِ ٨ او خداوند دَ مصر دَ بادشاه فرعون زړه
سخت کړ او هغه په بني اسرائيلو پسي لاړ ځکه چه بني اسرائيل ئي له
٩ زوروَر لاس نه ووتل ٩ او مصريان په هغو پسي لاړل - دَ فرعون ټولو اسونو
او ګاډو او دَ هغه سورو او دَ هغه لښکرو هغوي دَ درياب په غاړه

فینهاحیروث تخته دَ بعلِصفون په مخ کښ چه دیري ئې لګولي وي لاندِ
١٠ کړل ١٠ او چه فرعون نزدي شه نو بنِي اسرائیلو سترګي پورته کړي او
ګوره مصریان وروسته رائلل او دوي ډیر وویریدل او بنِي اسرائیلو خداوند
١١ ته فریاد وکړ ١١ او موسیٰ ته ئې ووِ چه ولي په مصر کښ قبرونه نه
وه څه؟ چه تا مونږ بیابان ته راوستلو چه ومرو- تا له مونږ سره دا
١٢ څه کار وکړ چه مونږ دِ له مصر نه بهر راوستو ١٢ دا هغه خبره نه
دَه څه؟ چه مونږ درته په مصر کښ ویلي وَه چه مونږ پرېږده چه مونږ
دَ مصریانو خدمت کوو- چه ځمونږ دَپارَ دَ مصریانو خدمت کول دَ
١٣ بیابان له مرګ نه غوره وه ١٣ نو موسیٰ خلقو ته ووِ چه ویره مه
کوئِ ودریږئِ او د خداوند خلاصي وګورئِ چه نن ورځ هغه ستاسو
دَپارَ وکړِي ولې چه هغه مصریان چه ئې تاسو نن وینئِ تاسو به
١٤ ئې بیا تر قیامتَ پورې و نه وینئِ ١٤ خداوند به ستاسو دَپارَ جنګ وکړِي
او تاسو به چپ پاتي شئ
١٥ ١٥ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه ولي ما ته چغي وهي- بنِي اسرائیلو
١٦ ته ووایه چه هغوي په مخ کښ لاړ شِي ١٦ ته خپله همسا پورته کړه او
په دریاب باندِ خپل لاس اوږد کړه او هغه دوه حصي کړه-
بنِي اسرائیل به دَ دریاب په مینځ کښ په وچکه زمکه باندِ تېر شِي
١٧ ١٧ او ګوره زه به دَ مصریانو زړونَ سخت کړم او هغوي به په هغو
پسي دننه لاړ شِي- او زه به په فرعون او دَ هغه په ټول لښکر
دَ هغه په ګاډو او دَ هغه په سورو باندِ خپله لويي څرګنده کړم
١٨ ١٨ او مصریان چه زه دَ فرعون په هغه ګاډو او دَ هغه په سورو
١٩ باندِ خپله لويي څرګنده کړم نو پوه به شِي چه زه خداوند یم ١٩ او دَ الله
فرښته چه دَ اسرائیلي لښکر دَ وړاندِ تلله وګرزیدله او دَ هغوي دَ
وروستو تلله- او دَ ورېځي ستن دَ هغوي له مخي نه لاړله او دَ هغوي
٢٠ په شا ودریده ٢٠ او دَ مصریانو دَ لښکر او دَ اسرائیل دَ لښکر تر مینځ

راغله او وريخ وه او تياره وه او شپي له رڼا وه نو ټوله شپه يو
٢١ بل له نزدي رانهغي ٢١ نو بيا موسیٰ په درياب باندِ خپل لاس اوږد
کړ۔ او خداوند په سبب دَ زورور باد دَ نورخاته تمامه شپه درياب و
٢٢ ګرزاوه او درياب ئې وچ کړ او اوبه ئې دوه حصّي کړي ٢٢ او بنيِ اسرائيل
دَ درياب په مينځ کښ په وچه باندِ تير شول۔ او ښيِ طرف ته او کينړ
٢٣ طرف ته له هغو نه دَ اوبو ديوالونَ وُو ٢٣ او مصريان ورپسي تلل دَ
فرعون ټول اسونَ ګاډي او سواره ئې دَ درياب په مينځ کښ ورپسي
٢٤ ننوتل ٢٤ او په اوّل صباح کښ داسي وشوه چه خداوند دَ اور او دَ
وريځي له ستني نه دَ مصريانو په لښکر باندِ نظر وکړ او دَ مصريانو
٢٥ لښکر ئې مات کړ ٢٥ او دَ هغو دَ ګاډو چکليِ ئې وکښلي نو درانه به
تلل۔ نو مصريانو ووِ چه راځيِ چه دَ اسرائيل له مخي نه وتښتو ځکه
چه يَهوَهْ دَ هغو دَپارَ له مصريانو سره جنګ کوِي
٢٦ ٢٦ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه خپل لاس په درياب باندِ اوږد
کړه چه اوبه په مصريانو او دَ هغو په ګاډو او دَ هغو په سورو باندِ
٢٧ په بيرته راشي ٢٧ نو موسیٰ خپل لاس په درياب باندِ اوږد کړ۔ خو
چه صبا کيده نو درياب په خپل دائمي حال بيرته راغي او مصريان
دَ هغه دَ مخي نه وتښتيدل او خداوند مصريان دَ درياب په مينځ کښ
٢٨ وغورزول ٢٨ او اوبه وګرزيدي او ګاډِي او سواره او دَ فرعون ټول
لښکر چه هغوي پسي درياب کښ ننوتلي وُو پټ ئې کړل۔ او يو هم
٢٩ له هغو نه باقِي پاتي نه شه ٢٩ ليکن بنيِ اسرائيل په وچه زمکه باندِ
دَ درياب په مينځ کښ لاړل او دَ هغوي ښيِ طرف ته او دَ هغوي کينړ
٣٠ طرف ته دَ اوبو ديوالونه وُو ٣٠ نو خداوند هغه ورځ اسرائيل دَ مصريانو
له لاسَ په داسي شان خلاص کړل۔ او اسرائيل دَ مصريانو مړي دَ
٣١ درياب په غاړه وليدل ٣١ او اسرائيل هغه لوي قدرت چه خداوند په
مصريانو باندِ ښکاره کړ وليد خلق له خداوند وويريده نو هاله ئې په خداوند

او دَ هغه په بنده موسیٰ باندِ ایمان راوړ ✢

# پنځلسم باب

۱ نو موسیٰ او بنِي اسرائیلو دَ خداوند دَپارَ دا سرود وکړ او خبرِي ئي
وکړِي وِ ئي
زه به دَ خداوند دَپارَ سرود ووایم ځکه چه هغه لويَ فتح
وکړه
هغه آس په دریاب کښ دَ سواره سره وغورزاوه
۲ خداوند ځما قوّت او ځما سرود دَي
او هغه ځما دَپارَ رهايِي شه
دا ځما الله دَي زه به دَ هغه لويِي کوم
ځما دَ پلار الله دَي دَ هغه تعریف به کوم
۳ خداوند جنګیالي دَي یَهُوَهُ ئي نوم دَي
۴ دَ فرعون ګاډِي او دَ هغه لښکر هغه په دریاب کښ وغورزول
او انړوِلي شوِي بهادران دَ هغه ئي په قلزم دریاب کښ ډوب کړل
۵ غرقاب پټ کړل هغوي دَ کاڼِي په شان تلِي ته لاړل
۶ اي خداوند ستا ښَي لاس په قوّت کښ زوروَر شه
او اي خداوند ستا ښِي لاس دښمنان ټوټِي ټوټِي کړل
۷ او تا دَ خپل عظمت په لويِۍ کښ خپل مقابله کوَنکي وغورزول
تا خپل غضب ورولیږه چه هغوي ئي لکه دَ دروزِي وسوزول
۸ او ستا دَ سپیږمو په باد سره اوبه یو ځاي راټولِي شوِي دِي
بهیدونکي اوبه لکه دَ غونډو ودریدِي
او دَ دریاب په زړه کښ غرقاب جمیا شه
۹ غلیم وِ چه زه به ورپسِي ځم ـ زه به ئي لاندي کړم
زه به دَ لوټ مال وویشم ځما نفس به په هغو ډک شِي
خپله توره به وباسم ځما لاس به هغوي ووژنِي

۱۰ تا خپل باد پُوکړ هغوي درياب پټ کړل ۱۰
هغوي لکه دَ سِيکي په شان په زورورو اوبو کښ ډوب شول
۱۱ څوک دَي ستا په شان په معبودانو کښ اي خداوند ۱۱
څوک دي ستا په شان په پاکيِ کښ ذوالجلال
په صفتونو کښ هيبتناک عجايب جوړوونکي يي
۱۲ تا خپل ښي لاس اوږد کړ نو زمکي هغوي ونغړل ۱۲
۱۳ تا په خپل رحمت سره هغه قوم چه تا خلاص کړ بيولي دي ۱۳
تا په خپل زور سره ترخپلَ پاکَ ځايَ پوري ورسَول
۱۴ قامونو واوريدل وريږديدل ۱۴
وسيدونکِي دَ فلسط ويري ونيول
۱۵ نو دَ ادوم سرداران حيران شول ۱۵
دَ مؤاب پهلوانان ريږديدلو نيولي دِي
او دَ کنعان ټول اوسيدونکِي وِيلي شوِي دِي
۱۶ په هغوي بانْدِ ويره او هيبت پريوتل ۱۶
ستا دَ لوي مُټي له کبلَ هغوي لکه دَ کاڼِي په شان چپ شول
څو چه ستا قام پوري نه وت اي خداوند
څو چه هغه قام چه تا په بيه اخستي دَي پوري نه وت
۱۷ ته به هغوي راولي او هغوي به دَ خپل ميراث په غره بانْدِ ۱۷
نهال کړي
په هغه ځاي چه تا دَ خپلو اوسيدو دَپارَ جوړ کړي دَي اي خداوند
هغه پاک ځاي چه اي خداوندَ ستا لاسونو جوړ کړي دَي
۱۸ خداوند به تر ابدَ پوري بادشاهي کوِي ۱۸
۱۹ او دَ فرعون اسونَ سره دَ هغه له ګاډو او سره دَ هغه دَ سورو په ۱۹
درياب کښ لاړِل او يَهوَهٔ دَ درياب اوبه په هغو بانْدِ را وګرزولي ليکن
بنِي اسرائيل دَ درياب په مينځ کښ په وچه بانْدِ تير شول ۲۰ نو دَ ۲۰

هارون خور مریمي نبيې تمبل په‌خپل لاس کښې واخست- او ټولي ښځيٰ دَ تمبلونو
۲۱ سره په کډیدو به هغې پسې ووتلي ۲۱ او مریمي دَ هغوي جواب ورکړ چه
خداوند له سرود وکړئ چه هغه لویَ فتح وکړه
هغه آس سره دَ سورَ په دریاب کښې وغورزاوه
۲۲ ۲۲ او موسیٰ اسرائیل له قلزم دریاب نه بوتله او دَ شور بیابان
ته لاړل- او هغوي دري ورځي په بیابان کښې لاړل او اوبه ئې بیا نه موندې
۲۳ او چه هغوي مارّي ته ورسیدل نو د مارّي اوبه ئې و نه څښلي شوي
۲۴ ځکه چه هغه تروي وي نو نوم ئې مارّه ایښي شوي وه ۲۴ نو خلقو موسیٰ
۲۵ ته ګله وکړه وِ ئې چه موږ څه وڅښو ۲۵ نو هغه خداوند ته زارِي وکړه
او خداوند هغه ته ونه وښوله- چه هغه ئې په هغو اوبو کښې واچوله
نو هغه اوبه خوږي شولي- هلته ئې هغوي لره حکم او عدالت جوړ کړ
۲۶ او هلته ئې هغوي وازمیل ۲۶ نو و ئې ویل که ته ښه واوري دَ خداوند
خپل الله آواز او هرڅه چه دَ هغه په نظر کښې ښه دِي وکړي او دَ
هغه حکمونَ واوري او دَ هغه قانون یاد کړي له هغې مرضونو نه چه
ما په مصریانو باندِ ایښي وُو هیڅ به په تا کښې نږدم- چه زه خداوند
ستا شافِي یم
۲۷ ۲۷ نو هغوي ایلیم ته چه هلته دَ اوبو دولس چیني وي او
اویا دَ کجورو وني وي راغلل نو هلته اوبو څخه ئې ډیره وکړه ÷

## شپاړسم باب

۱ ۱ نو هغوي له ایلیم نه روان شول او دَ بنِي اسرائیلو ټول جماعت
چه له مصر نه ووتل دَ دویمي میاشتي په پنځلسمه ورځ دَ سین بیابان
۲ ته چه دَ ایلیم او دَ سینا تر مینځ دي ورسیدل ۲ او ټول جماعت
۳ دَ بنِي اسرائیلو په بیابان کښې موسیٰ او هارون ته په ګله شول ۳ او
دوي دوارو ته بني اسرائیلو ووِ چه کاشکي که موږ دَ خداوند له لاسَ
دَ مصر په زمکه کښې هغه وقت چه موږ دَ غوښو کټوو څخه ناست

وُو او ډوډۍِ مو په مړو کيدِه و خوړلي مړه وي ځکه چه تاسو
موږ دَ دي دَپارَ دي بيابان ته راوستِي يُو چه ټول جماعت په لوږه
وو‌ژنۍِ ۴ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه گوره زه به له آسمان نه ستاسو ۴
دَپارَ ډوډۍِ ووروم-او خلق دِ هره ورځ ووزي او چه څو هره دَدوي
دَ يوی ورځي دَپارَ بس وِي هغه همره دِ جمع کوِي چه زه ازميښت
وکړم چه هغوي ځما په شرعَ ځي او که نه ځي ۵ او داسي به وِي چه په ۵
شپږمه ورځ به هغوي هغه راوړِي تيار به يِ کړِي او هغه همره چه
ورځ په ورځ جمعَ کيږِي دَ هغي په دو همره به وِي ۶ نو موسیٰ او هارون ۶
ټولو بنِي اسرائيلو ته ووِ چه نماښام به تاسو پوه شيِ چه خداوند تاسو
دَ مصر له زمکي نه راوستلِي يِۍِ ۷ او صبا ته به تاسو دَ خداوند لويي ۷
ووينۍِ ځکه چه تاسو چه له خداوند نه گله کوۍِ هغه يِ اورِي او موږ
څه يُو چه موږ ته گلي کوۍِ ۸ او موسیٰ ووِ چه داسي به وِي چه نماښام ۸
به خداوند تاسو ته خوراک دَپارَ غوښي او صبا ته به ډوډۍِ دَ مړيدو
دَپارَ درکړِي- چه خداوند هغه گلي چه تاسو يِۍ له هغه نه کوۍِ آورِي-
او موږ څه يُو- ستاسو گلي له موږ نه نه دِي بلکه له خداوند نه دِي
۹ بيا موسیٰ هارون ته ووِ چه دَ بنِي اسرائيلو ټول جماعت ته ووايه ۹
چه خداوند له نژدي لاړ شيِ چه هغه ستاسو گلي واوريدي ۱۰ او داسي ۱۰
وشوه چه هارون دَ بنِي اسرائيلو ټول جماعت ته ووِ نو هغوي بيابان
ته وکتل- نو گورهِ چه دَ خداوند لويي په وريځ کښ ښکاره شوه ۱۱ او ۱۱
خداوند موسیٰ ته خبرِي وکړِي و يِۍ ويل ۱۲ چه ما دَ بنِي اسرائيلو گلي ۱۲
واوريدي- هغوي ته خبري وکړهِ ووايه چه تاسو به نماښام ته غوښي
وخوريِۍ او صبا ته به په ډوډۍِ ماړه شيِ او تاسو به پوه شيِ چه
زه يَهوَهَ ستاسو الله يم ۱۳ او داسي وشوه چه نماښام ته ټمرزي ۱۳
پورته راغلي او تنبوان يِۍ پټ کړل او صباته له لښکرَ چاپيره پرخه پريوته
۱۴ خو پرخه چه پرته وه پورته شوه نو گوره چه دَ بيابان په مخ باندِ ۱۴

۱۵ ورووکي غنه ځيز ورووکي لکه پرخه په زمکه ۱۵ او بني اسرائيلو چه دا
وليده نو په خپلو کښ يې ووِ چه مَنْ هُوَ (يعني هغه څه دِي) ځکه چه
هغوي نه پيژانده چه دا څه دِي- نو موسیٰ ورته ووِ چه دا هغه ډوډيْ
۱۶ دَه چه خداوند تاسو له دَ خوراک دَپارَ درکړي دَه ۱۶ دا هغه خبره دَه
چه خداوند ويلي وَه تاسو له هغي نه ټولوئ هر يو موافق دَ خپل خوراک
په سړِي پسي يو عُمر په شمار دَ سرو هر يو دَ هغو دَپارَ چه په
۱۷ تنبو کښ وِي وا دِ خلي ۱۷ نو بني اسرائيلو دغه سي وکړه او ځينو زيات
۱۸ او ځينو کم جمع کړ ۱۸ او چه هغوي له عُمر سره پيمانه کړ نو چا چه
زياتي ټول کړي وه هيڅ قدر زيات ورته پاتي نه شه او دَ هغو چه
چا کم ټول کړي وه کم نه شه- هر يو موافق دَ خپل خوراک ټول کړي
۱۹ وه ۱۹ او موسیٰ هغوي ته ووِ چه هيڅوک دِ له هغي نه تر صبا پوري
۲۰ نه پريږدِي ۲۰ ليکن هغوي موسیٰ ته غوږ کښي نه ښودل- او ځينو تر صبا
پوري څه قدر له هغي نه پريښود نو په هغي کښ چنجي وشول او سخا
۲۱ شه موسیٰ هغوي ته په قهر شه ۲۱ او هغوي به هر صباح هر يو موافق
۲۲ دَ خپل خوراک انزاوه او چه نمر به تود شه نو هغه به ويلي شه ۲۲ او
داسي وشوه چه په شپږمه ورځ هغوي ډوډيْ دوه دونه جمع کړي دوه
دوه عُمرَ دَ يو سړِي دَپارَ- او دَ جماعت ټول سرداران راغلل موسیٰ
۲۳ ته يې خبر وکړ ۲۳ نو هغه ورته ووِ چه دا هغه خبره دَه چه خداوند
ويلي وَه- صبا دِ تاسو له آرام وِي مقدّس سبت دَ الله دَپارَ که تاسو
څه پخوئ نو پاخه کړئ او که څه بشوئ نوويشوئ او هر څه چه پاتي
۲۴ شي هغه کيږدئ تر صباح پوري يې ځان له وساتئ ۲۴ هغوي هغه
تر صبا پوري کښيښنو لکه چه موسیٰ حکم کړي وه نو نه سخا شه او
۲۵ نه په کښ چنجي وشول ۲۵ او موسیٰ ووِ چه هغه نن وخورئ ځکه
چه نن سبت دي خداوند لره نن به يې تاسو په ميره کښ بيا نه مومئ
۲۶ ۲۶ شپږ ورځي به يې تاسو جمع کوئ ليکن اوومه ورځ چه سبت دِي

۲۶ هیڅ به په کښې نه وي ۲۷ او داسې وشوه چه ځني له هغو خلقو نه په
۲۸ اوومه ورځ جمع کولو له لاړل او هیڅ ئې بیا نه موندل ۲۸ نو خداوند
موسیٰ ته ووې چه ترکومه پورې به تاسو زما د حکمونو او زما د شریعتونو
۲۹ د ساتنې انکار کوئ ۲۹ وګورئ چه خداوند تاسو له سبت درکړی دی
نو له دې سببه هغه تاسو لره په شپږمه ورځ د دوه ورځو دوډۍ
درکوي- هرڅوک دې په خپل ځای اوسي هیڅوک دې له خپل ځای
۳۱-۳۰ په اوومه ورځ نه ووزي ۳۰ نو خلقو په اوومه ورځ آرام وکړ ۳۱ او د
اسرائیل خانوادې د هغې نوم من کښېښود- او هغه د دنیا د دانې په
شان سپین او خوند ئې لکه په شان د دوډۍ چه شاتو سره ګډه وي
۳۲ وه ۳۲ نو موسیٰ ووې چه دا هغه خبره ده چه خداوند حکم کړي وه چه
یو عُمر له هغې نه د خپلو زمانو د پاره دې وساتلې شي چه هغوي
هغه دوډۍ ووینې چه ما تاسو باندې په بیابان کښې وخوروله
۳۳ چه ما تاسو د مصر له زمکې نه بهر کړئ ۳۳ او موسیٰ هارون
ته ووې چه یو مرتبان واخله او له یو عُمر من نه ئې ډک کړه او د
خداوند د وړاندې ئې کېږده چه هغه ستاسو د زمانو د پاره ساتلې
۳۴ وي ۳۴ او هارون لکه چه خداوند موسیٰ ته ویلي وُو د شهادة په
۳۵ مخ کښې ئې هغه کېښود چه وساتلې شي ۳۵ او بني اسرائیلو به من
خوړ څلوېښت کاله تر هغه چه څو آبادي زمکې ته راغلل
من به ئې خوړ- تر هغه پورې چه هغوي د کنعان د زمکې اطرافو
۳۶ ته راغلل ۳۶ او یو عُمر لسمه برخه د ایفې دی ❊

## اولسم باب

۱ ۱ نو ټول جماعت د بني اسرائیلو په خپلو سفرونو کښې برابر د
خداوند له حکم سره د سین له بیابان نه کوچ وکړ او په رفیدیم کښې
۲ ډېره شول او هلته د خلقو د څښلو اوبه نه وې ۲ نو خلق له موسیٰ
سره په جګړه شول او وئې ویل چه مونږ لره اوبه راکړه چه وڅښو-

موسیٰ هغوی ته ووِ چه تاسو له ما سره ولي جګړه کوئِ او په خداوند
٣ ولي ازمیښت کوئِ ٣ او هلته خلق دَ اوبو تږي وُو نو خلق موسیٰ
ته په ګله شول او وئي ویل چه تا مونږ له مصر نه ولي وکښلو
دَدي دَپارَ چه مونږ او ځمونږ هلکان او ځمونږ څاروِي له تندي
٤ نه ووژني ٤ نو موسیٰ خداوند ته په زاریٔ شه و ئي ویل چه زه
له دي خلقو سره څه وکړم هغوي خو اوس تږول ځما ګټو ویشتلو
٥ ته تیار دِي ٥ خداوند موسیٰ ته وویل چه دَ خلقو په مخ کښ ورځه
او دَ بنِي اسرائیلو مشران له ځان سره واخله او هغه ستا همسا
٦ چه تا پهٔ دریاب ووهله په خپل لاس کښ واخله او ځه ٦ ګوره
چه زه به هلته د حوریب په ګټ بانډِ ستا په مخ کښ وَلاړیم ته
هغه ګټ ووهه له هغه نه به اوبه ووزِي چه خلق به ئي وڅښي-
٧ موسیٰ دَ بنِي اسرائیلو دَ مشرانو په مخ کښ داسي کار وکړ ٧ او دَ
هغه ځاي نوم ئي مسته او مریبه کښیښود ځکه چه هلته بنِي اسرائیلو
جګړه وکړه او له دي سبب چه هغوي په خداوند بانډِ ازمیښت وکړ
او ویلي ئي وُو چه خداوند په مونږ کښ شته او که نشته
٨ ٨ نو عمالیق راغلل او په رفیدیم کښ له بنِي اسرائیلو سره
٩ وجنګیدل ٩ نو موسیٰ یشوع ته ووِ چه له مونږ نه خلق وانړوه
او ووزه له عمالیقو سره جنګ وکړه- صبا ته به زه دَ الله همسا
١٠ په خپل لاس کښ دَ غره په سر ولاړ یم ١٠ نو یشوع لکه چه څنګه
موسیٰ ورته ویلي وُو هغه سي ئي وکړه او له عمالیقو سره ئي جنګ
١١ وکړ- موسیٰ او هارون او حُور دَ غره په سر وختل ١١ او داسي وشوه
خو چه موسیٰ به لاس پورته کول نو اسرائیلو به فتح مونده او چه
١٢ لاس به ئي کښته کول نو عمالیق به فتحمند کیدل ١٢ چه دَ موسیٰ
لاسونه درانه شول نو هغوي یوه ګټه راواخستله او دَ هغه دَ لانډِ
ئي کړله نو هغه پري کښیناست- او هارون او حُور یو یو طرف ته او

بل بل طرف ته شه دَ هغه لاسونه به ئيُ پورته کول- نو دَ هغه لاسونه
تر نمرپرېوانه په قرار باتي شول ۱۳ يشوع عماليق او دَ هغوي قوم ئي دَ ۱۳
تُوري په مخ مات کړ ۱۴ نو خداوند موسيٰ ته ووِ چه دَ يادګارئِ دَپارَ ۱۴
په کتاب کښې دا وليکه او يشوع ته په غوږونو کښې دا وواېه څکه چه
زه به دَ عماليقو ذکر دَ آسمان لاندِ بالکل ورک کړم ۱۵ نو موسيٰ مذبح ۱۵
جوړه کړه- او دَ هغه نوم ئي يَهْوَهْ نِسِّي کښېښود ۱۶ او هغه ووِ چه ۱۶
خداوند قسم وخوړ نو دَ خداوند جنګ به پېړئِ په پيړئِ له عماليقو
سره وي ❊

## اتلسم باب

۱ پس يِتْرو دَ مديان کاهن دَ موسيٰ خسر ټول هغه چه الله دَ موسيٰ ۱
دَپارَ او دَ خپل قام اسرائيلو دَپارَ کړي وُو چه څنګه خداوند بني
اسرائيل له مصر نه وکښلِي وُو واورېدل ۲ نو يِتْرو دَ موسيٰ خسر ۲
صفوره دَ موسيٰ ښځه پس له هغه چه هغه ئي پرېښي وَه راوستله او
دَ هغي دواړه ځامن ۳ دَ يوه نوم جِرْشوم وه څکه چه هغه ووِ چه زه ۳
په پرديئِ زمکه کښې مسافر يم ۴ او دَ بل نوم ئي اَلِيْعَازِرْ څکه ۴
چه هغه ووِ چه دَ پلار الله مِ مددګار دَي او هغه زه دَ فرعون له
تُوري نه وساتلم ۵ دَ موسيٰ خسر يِتْرو دَ هغه دواړه ځامن او ۵
دَ هغه ښځه ئي له ځان سره کړه موسيٰ لره په ځنګل کښې چه هلته
ډېره شه دَ الله په غره باندِ راغي ۶ او موسيٰ ته ئيُ ووِ چه زه ستا ۶
خسر يِتْرو ستا له ښځي او له دواړو ځامنو سره تا له راغلي يم ۷ نو ۷
موسيٰ دَ خپل خسر مخي ته ووت او تعظيم ئي وکړ او ښکل ئي کړ
او يو دَ بل دَ روغ جوړ تپوس ئي وکړ او تنبو ته ننوتل ۸ موسيٰ ټول ۸
حال خسر ته ووِ ټول څه چه خداوند دَ اسرائيلو دَپارَ فرعون او دَ
مصريانو سره وکړل- او په لارکښې په هغو باندِ ټول غمونَ چه پرېوتلي
وُو او خداوند هغوي څه رنګ خلاص کړل ۹ نو يِتْرو دَ هغه ۹

ټول احسان په سبب چه خداوند په اسرائيلو باندِ کړي وه چه هغوي
لره هغه دَ مصريانو له لاسَ خلاصي ورکړ خوشحال شه ۱۰ او يتْرو ۱۰
ووِ مبارک دي يَهُوَهْ چه هغه تاسو لره دَ مصريانو له لاسَ او دَ
فرعون له لاسَ خلاصي درکړ- او هغه چه دا قام ئې دَ لاندِ له لاسَ
دَ مصريانو نه خلاص کړ ۱۱ اوس ځما باور وشه چه يَهُوَهْ له ټولو ۱۱
خدايانو نه لوي دي هو په هغه کار کښې چه ئې په هغوي باندي
مغروري وکړه ۱۲ نو دَ موسیٰ خسر يتْرو دَ سوزَولو قربانئِ او ذبحي دَ ۱۲
الله دَپارَ واخستلي- او هارون او مشران دَ اسرائيلو دَ موسیٰ له خسر
سره دَ ډوډئِ خوړو دَپارَ دَ الله مخې ته راغلل ۱۳ او صبا ته داسي وشو ۱۳
چه موسیٰ دَ خلقو دَ عدالت دَپارَ کښيناست او خلق دَ موسیٰ نه
چاپيره له صبا نه تر نمازِ ماښامَ پوري ولاړ وه ۱۴ چه دَ موسیٰ خسر دا ۱۴
ټول څه چه ده له خلقو سره وکړل وليدل نو وئې وِ چه ته له
خلقو سره دا څه کوي- ته ولي يخپله يواځې ناست يې او ټول خلق له
صباح نه تر نمازِ ماښامَ پوري ستا نه چاپيره ولاړ وِي ۱۵ موسیٰ خپل خسر ۱۵
ته ووِ چه دَدي دَپارَ چه خلق دَ الله نه دَ سوال کولو دَپارَ ما لره راځي
۱۶ چه دَ هغوي په کور کښې څه مقدمه وِي نو هغوي ما لره راځي او ۱۶
زه دَ سړي او دَ هغه دَ همسايه په مينځ کښې انصاف کوم او زه
هغوي ته دَ الله حکمونه او شريعتونه دَ هغه ښيم ۱۷ نو دَ موسیٰ ۱۷
خسر هغه ته ووِ چه ته دا کار چه کوي ښه نه دي ۱۸ ځکه چه ۱۸
ته به يقيناً ناجوړه شي ته او دا خلق چه له تا سره دِي ځکه چه
دا کار په تا باندِ ډير دُرند دي ته ئې يواځي پوره کولي نشي ۱۹ اوس ۱۹
ته ځما خبره واوره زه تا ته يوه صلاح درکوم- الله دِ له تا سره وِي
او ته دَ خلقو دَپارَ الله مخه اوسه- او دَ هغه ټولو دعوي الله ته
وړاندِ کوه ۲۰ او ته حکمونه او شريعتونه هغوي ته ظاهر کړه او ۲۰
هغه لار چه په هغې تلل او هغه کار چه هغوي کول هغوته ونبيه

۲۱ نو ته له ټولو خلقو نه اعتباریان خلق وانزوه چه له الله نه ویریږي ۲۱
او رښتیني سړي چه دَ رشوت سره دښمني کوي - او داسي سړي په هغوي
بانديِ ودروه چه سرداران وِي په زرو او سرداران وِي په سلو او سرداران وي په پنځوسو او سرداران
وِي په لسو ۲۲ هغوي به دَ هغي خلقو هر وقت عدالت کوِي - او داسي به ۲۲
وِي چه هره لويه مقدمه دِ تا لره راوړي ليکن هره وړوکي مقدمه
دِ هغوي خلاصوِي چه دا به ستا دَپارَ ډيره اسانه وِي او هغوي به په
باراخستو کښ له تا سره شريک وِي ۲۳ که ته داسي کار وکړي او الله ۲۳
تا ته داسي حکم وکړي نو و به پائيدي شي او دا ټول خلق به هم خپل
خپل ځاي ته په سلامتيا سره لاړ شي ۲۴ نو موسیٰ دَ خسر ويل ومنل ۲۴
او هغه ټول چه هغه ورته څه ويلي وُو و ئي کړل ۲۵ موسیٰ له ټولو ۲۵
بني اسرائيلو نه اعتباريان خلق وانزول او دَ هغو خلقو سرداران ئي کړل
دَ زرګونو سرداران او دَ سوونو سرداران او دَ پنځوسو سرداران او دَ
لسو سرداران ۲۶ نو هغوي به هر وقت دَ خلقو عدالت کاوه - کراني مقدمي ۲۶
به ئي موسیٰ لره راوړلي ليکن وړوکي مقدمي به ئي پخپله خلاصولي -
۲۷ نو موسیٰ خپل خسر رخصت کړ او هغه خپلي زمکي ته روان شه ◆ ۲۷

## نولسم باب

۱ او چه بني اسرائيل دَ مصر له زمکي نه بهر ووتل نو دَ دريمي مياشتي ۱
په هغه ورځ دَ سينا بيابان ته ورسيدل ۲ يعني له رفيديم نه روان ۲
شول دَ سينا بيابان ته ورسيدل او په بيابان کښ ډيره شول - او
اسرائيلو دَ غره په مخ کښ تنبوان ودرول ۳ نو موسیٰ الله ته وخوت ۳
او خداوند ورته له غره نه آواز وکړ وِ ئي چه ته دَ يعقوب خانوادي
ته داسي ووايه او بني اسرائيلو ته بيان وکړه ۴ چه تاسو هغه څه چه ۴
ما له مصريانو سره وکړل وليدل او تاسو مِ دَ ګرګسانو په وزرو کښينولِئ
او خپل ځان څخه مِ راستولِئ ۵ اوس که تاسو په رښتيا زما خبره ۵
واورئِ او زما دَ وعدي ساتنه وکړئِ نو تاسو به له ټولو قامونو نه زما

۶ دَپارَ یوه خاصه خزانه یئِ څکه چه ټوله زمکه څما دَه ۶ او تاسو به څما
دَپارَ دَ کوهینانو مملکت او پاک قام یئِ۔ دا هغه خبري دِي چه ته به
۷ ئې بنِي اسرائیلو ته وایې ۷ نو موسیٰ راغي او دَ خلقو مشران ئې را وبلل
او دَ هغوِ دِ وړاندِ ئې هغه ټولي خبري چه خداوند ورته حکم کړي وه بیان
۸ کړي ۸ ټول قام په یو څل جواب ورکړ او وئې ویل هر څه چه خداوند ویلي
۹ دِي مونږ به ئې وکړو۔ نو موسیٰ دَ خلقو خبري خداوند ته وکړي ۹ خداوند موسیٰ
ته ووِ چه ګوره زه په توره وریځ کښ تا نخته درځم هر کله چه زه له تا
سره خبري کوم خلق ئې واورِي او تر ابدَ پوري په تا باور کوِي۔ او چه
۱۰ موسیٰ دَ خلقو خبري خداوند ته ووېلي ۱۰ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه خلقو
له لاړ شَه او په نن او په صبا کښ هغوي پاک کړه او هغوي دِ خپلي
۱۱ جامي ووینځي ۱۱ او په دریمه ورځ دِ تیار وِي چه خداوند به دَ ټولو دَ
۱۲ سترګو دَ وړاندِ په دریمه ورځ دَ سینا په غره باندِ کوز شِي ۱۲ او ته خلقو
له چارچاپیره حدونَ مقرر کړه ورته ووایه چه خبردار شئِ چه په غره
باندِ و نه خیژئِ او نه ئې پر لمن لاس ولګوئِ۔ چه څوک پر غره لاس
۱۳ ولګوِي و به وژلي شِي ۱۳ هیڅ یو لاس دِ په هغه و نه لګیږي مګر هغه
به یا په کاڼو وویشتي شِي یا به (په غشِي) مړ کړي شِي۔ که څاروي
وِي که سړي وِي ژوندي به پاتِي نه شِي۔ او خو چه وږده توري وغږیږي
۱۴ نو غره ته دِ وخیژي ۱۴ نو موسیٰ له غرهٔ نه خلقو ته کوز شه خلق
۱۵ ئې پاک کړل۔ هغوي خپلي جامي ووینځلي او هغه خلقو ته ووېل چه
۱۶ په دریمه ورځ تیار اوسئِ ښځو ته مه نزدي کیږئِ ۱۶ او داسي وشوه
چه په دریمه ورځ صبا ته ګرړیده او برېښیده او په غره باندِ لوي ګټه
دَ وریځي شه او دَ تورئِ آواز ډیر اوچت شه چه ټول خلق په ډیره
۱۷ کښ وریږدیدل ۱۷ نو موسیٰ خلق له ډیري نه بهر کړل چه له الله سره
۱۸ ملاقات وکړِي۔ او هغوي دَ غره په لمن ودریدل ۱۸ دَ سینا په ټول
غره باندِ لوګي وه څکه چه خداوند په لنبه کښ په هغه باندِ کوز شوي وه

لوګي لګه چه دَ تنور لوګي دَ هغه دَپاسَ پورته شه-او ټول غر ډير وخوزيده
۱۹ ۱۹ نوچه دَ توريُ آواز به اوچتيده- موسىٰ خبري وکړلي- او الله په آواز
۲۰ کښ جواب ورکاوه ۲۰ خداوند دَ سينا په غره باندِ کوز شه دَ غره په سرباندِ
او خداوند دَ غره سر ته موسىٰ وباله او موسىٰ وخوت ۲۱ خداوند موسىٰ ته
ووِ چه کوز شه او په خلقو باندِ کلکوالي وکړه چرِي نه وِي چه حدونَ
۲۲ مات کړي خداوند ځخه دَ ليدو دَپارَ راشِي او ډير له هغوي نه ومري ۲۲ او
کوهنان چه خداوند له نزدي راځي ځانونه دِ پاک کړي چرِي نه وِي چه
۲۳ خداوند په هغوي حمله وکړِي ۲۳ نو موسىٰ خداوند ته ووِ چه خلق دَ سينا
په غره نه شِي ختي ځکه چه تا په موږ کلکوالي وکړِ او ودِ وي چه دَ
۲۴ غره حدونَ مقرّر کړئِ او پاک ئي کړئِ ۲۴ خداوند هغه ته ووِ چه ورځه کښته کوز
شَه او ته له هارون سره بيا په پورته راشه مګر کوهنان او خلق دِ حدونَ
مات نه کړي او پورته خداوند له دِ رانه شِي چرِي نه وِيَ چه هغه پرِ حمله
۲۵ وکړِي ۲۵ نو موسىٰ خلقو ته کوز شه او ور ته ئي وويل +

# شلم باب

۱ ۱ او الله ورته دا ټولي خبري وفرمايلي وِئي وِ
۲ ۲ زه يَهْوَهْ ستا الله يم چه ته مِ دَ مصر له زمکي نه او دَ مريِي توب
له کور نه بهر کړي يي
۳ ۳ نه دِ وِي تاسو له نور خدايان ځما دَ وړاندِ
۴ ۴ نه دَځان دَپارَ توږلي بُت يا هيڅ صورت چه پورته په آسمان باندِ
يا کښته په زمکه باندِ يا په اوبو کښ دَ زمکي لاندِ دي: مه جوړوه-
۵ ۵ ته هغوي ته سجده مه کوه او مه دَ هغوي عبادت کوه ځکه چه
زه يَهْوَهْ ستا الله غيرت ناک الله يم او دَ پلرونو نيکونو ګناهونَ دَ هغوي
اولاد ته چه له ما سره دښمني کوِي تر دريمي او تر څلورمي پيړئِ
۶ پوري رَسوم ۶ او له زرګونو سره چه له ما سره مينه کوِي او ځما
حکمونَ ساتِي احسان کوم

۷ ۷ ته دَ یَهُوَهْ خپل الله نوم عبث مه آخله ځکه چه څوک دَ هغه
نوم عبث اخلي نو یَهُوَهْ هغه بيْ ګناهَ نه شمیرِي
۸-۹ ۸ ته دَ سبت ورځ دَ پاکِيْ دَپارَ یاده لره ۹ شپږ ورځي محنت کوه
۱۰ او ټول خپل کاروبار کوه ۱۰ لیکن اومه ورځ دَ یَهُوَهْ ستا دَ الله سبت
دي په هغي کښ هیڅ کار مه کوه نه ته نه ستا ځوي نه ستا لُور نه
ستا مریي نه ستا وِینځه نه ستا ځاروي نه مسافر چه ستا په دروازه
۱۱ کښ دننه وِي ۱۱ ځکه چه یَهُوَهْ په شپږو ورځو کښ آسمان او زمکه درياب
او هر څه چه په هغوي کښ دِي جوړ کړل- او په اوومه ورځ ئي آرام وکړ
له دي سببَ یَهُوَهْ دَ سبت ورځي له برکت ورکړي دي او هغه ئي پاکه
کړي ده
۱۲ ۱۲ ته دَ خپل پلار او دَ خپلي مور عزّت کوه دَ دي دَپارَ چه
ستا ورځي په هغي زمکه باندِ چه یَهُوَهْ ستا الله تا له درکوِي اوږدي شي
۱۳ ۱۳ ته خون مه کوه
۱۴ ۱۴ ته زنا مه کوه
۱۵ ۱۵ ته غلا مه کوه
۱۶ ۱۶ ته په خپل ګاونډِي باندِ دَ دروغو شاهدِي مه لوه
۱۷ ۱۷ ته دَ خپل ګاونډِي دَ کور طمعَ مه کوه ته دَ خپل
ګاونډِي دَ ښځي طمعَ مه کوه او نه ئي دَ مریي او نه
ئي دَ وِینځي او نه ئي دَ غوایه او نه ئي دَ خره او نه دَ
هیڅ شِي چه ستا دَ ګاونډِي دي
۱۸ ۱۸ او ټولو خلقو ګړیدل او بریښیدل معلوم کړل او دَ تورئِ
آواز او دَ غره لوګي او خلقو چه دا ولیدل نو یریدل او لري ودریدل
۱۹ ۱۹ نو موسیٰ ته ئي ووِ چه ته له موږَ سره خبري کوه موږ به ئي
اورُو مګر الله دِ څموږ سره خبري نه کوِي هسي نه وِي چه موږ
۲۰ ومرُو ۲۰ موسیٰ خلقو ته ووِ چه مه ویریږئِ ځکه چه الله راغلي دي

چه په تاسو ازمیښت وکړي او چه دَ هغه ویره ستاسو په مخ کښې
۲۱ وِي چه تاسو خطا و نه کړئ ۲۱ نو خلق لري ودریدل او موسیٰ هغې
توري تیاري له چه په هغې کښې الله وه نزدې ورغې
۲۲ ۲۲ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه ته بني‌اسرائیلو ته ووایه چه
۲۳ تاسو ولیده چه ما له آسمان نه له تاسو سره خبري وکړي ۲۳ تاسو
خما په برابرئ کښې دَ سپینو زرو خدایان مه جوړوئ او مه خپل
۲۴ ځان له دَ سرو زرو خدایان جوړوئ ۲۴ خما دَپارَ له خاورو نه مذبح
جوړه کړه او ته به هغې باندِ خپلي دَ سوزولو قربانئ او خپلي دَ سلامتیا
قربانئ خپلي کډي او خپل غویان ذبح کوه په کمو ځایونو کښې چه زه دَخپل
نوم تذکره وکړم نو هلته به زه تا ځه درشم او تا له به برکت درکړم
۲۵ ۲۵ اوکه ته ما له دَ کاڼو مذبح جوړوي نو له توږلو کاڼو نه ئې مه جوړوه
۲۶ ځکه چه که ته به هغې باندِ کالي ولګوي نو هغه به ناپاکه کړي ۲۶ ته
خما په مذبح باندِ په پوړو مه خیژه ځکه چه ستا بربنډوالي په هغې
ښکاره نه شي *

# یو ویشتم باب

۱ ۱ نو هغه عدالتونه چه ته به ئې دوي ته ښیي دا دِي
۲ ۲ چه ته عبراني مریي په بیعه واخلي نو شپږ کالَ دِ ستا خدمت
۳ کوي او په اوم کال دِ ویریا آزاد شي ۳ که هغه یواځي راغلي وه نو یواځي
۴ به ځي اوکه واده کړي وه نو دَ هغه ښځه به له هغه سره ځي ۴ او که
دَ هغه خاوند هغه لره ښځه ورکړه او له هغې نه دَده ځامن او لوڼه
پیدا شول نو ښځه به له اولادَ سره دَ خاوند وِي او هغه دِ یوازي
۵ لاړ شي ۵ اوکه دا مریي صاف ووایي چه زه په خپل خاوند او په خپله
۶ ښځه او په اولاد مین یم زه آزاد شوي نه وځم ۶ نو دَ هغه خاوند دِ
هغه الله له راولي او بیا دِ ئې دروازي له یا درشلي له راولي او په
رینه دِ دَ هغه غوږ سوري کړي او هغه دِ دَ هغه مریي‌توب همیشه کوي

۷ ۷ او که څوک خپله لور خرڅه کړي وينځ توب لره نو لکه د مريو
۸ په شان به بهر نه ووزي ۸ او که د هغه خاوند په نظر کښ چه په
خپل نامه کړي ئې ده بده پرېوتله نو فديه دِ ورکړي شي۔او هغه له
دا روا نه ده چه هغه دِ په پردي قام باندِ خرڅوي څکه چه ده له هغي
۹ سره ټګي وکړه ۹ او که هغه ئې د خپل زوي په نامه کړي وي نو هغه
۱۰ دِ له هغي سره د لوڼړو په شان کار کوي ۱۰ او که هغه له بلي سره
نکاح وکړ نو د هغي په خوراک او په آغوستن او په کورکولو کښ دِ کمي
۱۱ نه کوِي ۱۱ او که هغه دا دري واړه کاروڼ نه کوِي نو هغه دِ بي روپو
ورکولو ويرِيا لاړه شي
۱۲ ۱۲ چه څوک يو سړي ووهي او هغه مړشي نو البته دي دِ و
۱۳ وژللي شي ۱۳ او که سړي د هغه په څوکښ نه وه او الله د هغه په
۱۴ لاس کښ وسپاره نو زه به د هغه د تيښتي ځاي وښيم ۱۴ که يو سړي
په خپل ګاونډي باندِ په زور وخيژي هغه په حيله ووژني نو ته هغه
ځما د قربانګاه نه وباسه چه هغه ومري
۱۵ ۱۵ او هغه چا چه خپل پلار يا مور ووهل نو البته و دِ
وژللي شي
۱۶ ۱۶ او هغه څوک چه سړي غلا کړي او هغه خرڅ کړي يا هغه
څخه و ليدي شي نو هغه دِ البته ووژلي شي
۱۷ ۱۷ هغه څوک چه په خپل پلار يا په مور باندِ لعنت ووايي البته
و دِ وژلي شي
۱۸ ۱۸ او که دوه تنو جنګ وکړ او يو بل په کټه يا ئي په سوک و
۱۹ واهه او هغه مړ نه شه ليکن په کټ کښ پرېوت ۱۹ نو که هغه
پورته شه او همسا ئي واخسته بهر لاړ نو هغه وهونکي به خلاص شي
فقط د هغه د کاروبار چه څه نقصان شوي دي هغه دِ ورکړي۔ او
د هغــــه علاج دِ وکړي شي

۲۰ ۲۰ او که څوک خپل مريي يا وينځه په همسا ووهي او هغه دَ هغه
۲۱ له لاسَ مړ شي نو هغه له دِ سزا ورکړي شي ۲۱ ليکن که هغه يوه
ورځ يا دوه ورځي ژوندي پاتي شي هغه له دِ سزا نه شي ورکولي ځکه
چه دَ هغه روپئ دي
۲۲ ۲۲ که خلقو جنګ وکړ او اميدواري ښځي ته ئي ضرر ورساوه
په داسي شان ته چه دَ هغي اميد پريوت ليکن نقصان و نه رسيده
البته هغه به جرمانه کړي شي په هغه شان چه دَ ښځي خاوند
۲۳ ورباندِ کيږدي او هغه به ورکړي-لکه چه قاضيان مقرر کړي ۲۳ او که
۲۴ څه ضرر ورسيده نو هله دَ ځان په بدله کښ ځان واخله ۲۴ او دَ
سترګي په بدله کښ سترګه دَ غاښ په بدله کښ غاښ دَ لاس په بدله
۲۵ کښ لاس دَ پښو په بدله کښ پښي ۲۵ دَ سوزلو په بدله کښ سوزول
دَ ژوبلولو په بدله کښ ژوبلول دَ وهلو په بدله کښ وهل
۲۶ ۲۶ او که څوک سترګه دَ خپل مريي يا سترګه دَ خپلي وينځي ووهي
۲۷ چه ړنده ئي کړي نو دَ هغي سترګي په بدله کښ دِ هغه آزاد کړي ۲۷ او
که دَ خپل مريي غاښ يا دَ خپلي وينځي غاښ مات کړي نو دَ هغي غاښ
په بدله کښ دِ هغه آزاد کړي
۲۸ ۲۸ او که غوايي سړي يا ښځه په ښکر ووهي چه ومري نو هغه
غوايي دِ په کڼو ويشتلي شي او غوښي دِ و نه خوړي شي او دَ غوايه
۲۹ خاوند بيګناهَ دي ۲۹ ليکن که هغه غوايه له دي نه ورونبي په ښکرو
وهلو عادت وَه او مالک ئي خبر کړي شوي وه او هغه هغَه و نه تاړه
او هغه سړي يا ښځه ووژلل نو غوايي دِ په کڼو ووژلي شي او خاوند
۳۰ دِ هم مړ کړي شي ۳۰ او که په هغه باندِ بها مقرر کړي شي نو هغه
۳۱ دِ هغه بدله چه څه دَ هغه په سر کښيښوي شي پوره ورکړي ۳۱ که
ځوي ئي وهلي وي او که لور ئي وهلي وي هم دَ دي حکم په موجب کار
۳۲ دِ ورسره کولي شي ۳۲ او که غوايي دَ چا مريي يا وينځه په ښکرو ووهي

نو هغه دِ دَ هغه مالک ته دیرش مثقالَ دَ سپینو زرو ورکړِي۔
او غوبي دِ په کڼو ووېشلي شِي
٣٣ ٣٣ او که څوک کوهي پرانزِي یا که څوک کوهي وکِني او بند ئي نه کړِي
٣٤ او غوبي یا خر په کښِ پریوزِي ٣٤ نو دَ کوهِي خاوند دِ هغه لره بدله
ورکړِي او دَ هغه مال قیمت دِ ورکړِي۔ او هغه مړ به دَ هغه وِي
٣٥ ٣٥ او که دَ چا غوبي دَ بل چا غوبي وواهه چه هغه ومړ نو هغه
دِ هغه ژوندي غوبي خرڅ کړِي او قیمت دِ ئي وویشِي او هغه مړ دِ هم
٣٦ وویشِي ٣٦ لیکن که معلومه شوه چه دَ هغَه غوبي دَ ښکرو وهلو عادت
وه او هغه مالک هغه ونه تاړه نو هغه دِ دَ غوایه په بدله کښِ غوبي
ورکړِي او هغه مړ به دَ هغه مال شِي ٭

## دوه ویشتم باب

١ ١ که څوک غوبي یا گډه پټ کړِي او حلال ئي کړِي یا ئي خرڅ کړِي نو هغه
به دَ هغه یو غوبي په بدله کښِ پنځه غوبان او دَ یو گډه په بدله کښِ څلور
٢ گډان ورکوِي ٢ که غل په کنډ سورِي کولو کښِ ولیدي شِي او څوک ئي
٣ ووهِي او مړ شِي نو په هغه خون نشته دي ٣ او که نور پرِوخېژي نو
په هغه خون شته دي چه هغَه دِ بدله ورکړِي۔ که هغه څخه څه
٤ شي نه وه نو دَ غلا دَپارَ دِ خرڅ کړي شِي ٤ او که دَ غلا شي هم هغه
سي ژوندي دَ هغه په لاس کښِ بیاموندي شه که هغَه غوایه وه او که
خر وه او که گډه وه نو دوېرَه به ئي ورکوِي
٥ ٥ که څوک فصل یا انگورستان وخورِوي او خپل څارِوي په
کښِ پرېږدي یا دَ بل چا په پټِي کښِ ئي وځروي نو له غوره نه غوره
خپل فصل او له غوره نه غوره دَ انگورستان خپل دِ دَ هغې په
بدله کښِ ورکوِي
٦ ٦ که اور لنبه شه او په اغزو ولگیده په داسي شان چه دَ غلو
دلِي یا ولاړ فصل یا پټِي ئي وسه نو چاچه اور لگولي دي بدله

دِ وركړي
٧ كه څوک خپل همسايه ته نقد يا جنس دَ ايښو دَپارَ وسپاري ٧
او دَ هغه له كور نه په غلا لاړ شي نو چه غل ونيوي شي دونړه دِ
تر واخستي شي ٨ كه غل ونه نيولي شي نو دَ هغي كورخاوند دِ الله ته ٨
حاضر كړي شي دَ دي دَپارَ چه معلومه شي چه هغه دَخپل گاونډي
په مال ئي لاس لگولي دي كه نه دي ٩ دَ تاوان دَ هر قسم په دعوىٰ ٩
كښي دَ غوايه وي كه دَ خره وي كه دَ گډ وي كه دَ زړوكي يا دَ څه څيز
چه ورک شوي وي چه څوک دَ هغي دعوه وكړي چه دا هغه دَي دَ
دوارو فرقو دعوىٰ دِ الله له راشي او چه الله څوک پړ كا هغه دِ خپل
مدعي لره دونړه وركوي

١٠ كه څوک خپل گاونډي څخه خر يا غويي يا گډ يا څه څاروي ١٠
امانت پريږدي او هغه مړ شي يا عيبجن شي يا په داړه بوتلي شي
او څوک ئي ونه وينې ١١ نو دَ هغي دوارو په مينځ كښ دِ دَ الله قسم ١١
وي چه هغه دَ خپل گاونډي په مال ئي لاس اچولي نه دي-نو مالک
دِ ئي قبول كړي او هغه دِ تاوان نه وركوي ١٢ او كه له هغه نه په ١٢
غلا وړي شوي وي نو هغه به ئي مالک له تاوان وركوي ١٣ او كه ١٣
هغه مات كړي شي نو هغه دِ پړ گواهان تير كړي او دَ مات شوي
تاوان دِ نه وركوي

١٤ كه يو سړي له خپل گاونډي نه څه وغواړي او هغه ژوبل ١٤
شي يا مړ شي كه مالک ورسره نه وه نو هغه دِ دَ هغي بدله وركوي
١٥ او كه خاوند ئي ورسره وه نو تاوان دِ ئي نه وركوي-كه په كرايه ئي ١٥
بوتلي وي نو دي دِ فقط هغه اجرت وركوي

١٦ كه څوک يوه پيغله چه كوژدن شوي نه وي رضا كړي او ور ١٦
ته نزدي شي هغه دِ هغي لره مهر وركړي او نكاح دِ ورسره وكړي
١٧ كه پلار ئي راضي نه شه چه هغه ور لره وركړي نو هغه دِ دَ پيغلو ١٧

په شان ته مهر وله ورکړي
۱۸ ۱۸ جادوګره ژوندئ مه پرېږده
۱۹ ۱۹ چه څوک څاروي سره بدکاري وکړي ودِ وژلي شي
۲۰ ۲۰ چه څوک دَ خدایانو دَپارَ بي له یَهُوَهٔ قرباني وکړي په عذابونو دِ
۲۱ وژللي شي ۲۱ ته مسافر هیڅري مه آزاروه او تنګوه ئي مه څکه چه تاسو
۲۲ هم دَ مصر په زمکه کښں مسافر وئ ۲۲ تاسو هیڅ یوه کُنډه یا یتیم مه
۲۳ عذابوئ ۲۳ که ته په څه شان هغه عذاب کړي او هغه ما ته فریاد وکړي
۲۴ نو زه به دَ هغوي فریاد واورم ۲۴ او څما قهر به لنبه شي زه به تا په توره
ووژنم نو ستا ښځي به کنډي او څامن به دِ یتیمان شي
۲۵ ۲۵ که ته څما له خلقو نه هغه چا لره چه ستا په مخ کښں محتاج
دِي څه قرض ورکړي نو دَ سوائیخور په شان ورسره مه کوه او له هغه
۲۶ نه سود مه اخله ۲۶ که ته له خپل ګاونډي نه زیړوکي په ګانړه واخلي
۲۷ نو ته به ئي نمر پریواته ته بیا ورکړي ۲۷ څکه چه دا فقط دَ هغه
اغوستن دَي- دا دَ هغه دَ څرمني اغوستن دي چه په څه کښں به څملي-
او داسي به وِي چه هر کله چه هغه ما ته فریاد وکړي نو زه به ئي واورم
څکه چه زه مهربان یم
۲۸ ۲۹ ۲۸ الله ته بنکنځل مه کوه دَ قام حاکم باند لعنت مه وایه- ۲۹ ته
دَ خپلو میوو او دَ عرق په نذر کولو کښں ما ته درنګ مه کوه او
۳۰ دَ خپلو څامنو نه مشر ما له راکړه ۳۰ هم دا رنګ ته له غوایانو سره
او له ګډو سره وکړه تر اوو ورڅو پوري دِ هغه له موره سره وِي
۳۱ په اتمه ورڅ ته هغه ما لره راکړه ۳۱ تاسو څما پاک خلق یئ- دَ لیوګانو
ماته کړي غوښه چه په بیابان کښں پرته وِي مه خورئ- تاسو هغه
سپو ته واچوئ ❖

## دروېشتم باب

۱ ۱ ته په دروغو باندِ باور مه کوه- ته دَ دروغو په ګواهئ کښں له بدانو

سره مه شریکیږه ۲ ته دَ ګنړو په بدئِ کښې پیروِي مه کوه- او ته په ۲
یوه جګړه کښې په ګنړو پسې مه ځه چه ناحقه به کوِي ۳ او مه دَ خوار ۳
سړِي په جګړه کښې طرف‌دارِي کوه
۴ که ته دَ خپل دشمن غویِي یاخر په خطا لار ووینې چه ځي ۴
نو ته يُ البته هغه ته ورسَوه ۵ او که ته دَ هغه چا خر چه له تا سره ۵
يُ کینه دَه ووینې چه دَ بار لاندِ سملاست او دَ هغه مدد کول نه
غواړي نو ته ضرور له هغه سره کمک وکړه
۶ ته دَ خپل غریب په مقدمه کښې ناحقه مه ۶
کوه ۷ له دروغ خبري نه لري اوسه او بي‌ګناهَ او صادق مه وژنه ۷
ځکه چه زه به دَ ګناهګارانو انصاف و نه کړم ۸ ته بډي مه اخله ځکه ۸
چه بډي بینایان ړندوِي او دَ رښتینو په معامله کښې خلل داولِي ۹ او ۹
مسافر هم مه عذابوه چه ته دَ مسافر په زړه پوهیږې- ځکه چه تاسو
هم دَ مصر په زمکه کښې مسافر وئِ
۱۰ شپږ کالَ په زمکه کښې کر وکړه او چه له هغې نه څه پیدا ۱۰
شول هغه جمعَ کړه ۱۱ لیکن په اوم کال هغه آزاده کړه او پرېږده چه ۱۱
ستا دَ قام غریبان يُ وخوري او چه له هغو نه څه پاتې شول دَ میدان
ځاروِي په کښې وخرِي- او ته دَ خپل انګورستان او دَ خپلو خونانو له
باغ سره هم دغه‌سي کار وکړه ۱۲ شپږ ورځي خپل کاروبار کوه او په اومه ۱۲
ورځ آرام وکړه چه ستا غويي او ستا خر هم آرام بیاموِي او ستا دَ
وِینځي ځامن او مسافر ساه واخلِي ۱۳ او په هغو ټولو کښې چه ما تا ته وَیلِي ۱۳
دِي هوښیار اوسه- او ته دَ نورو خدایانو نوم مه اخله او هم چه ستا
له خولې وا نه وریدي شِي
۱۴ ته په کالُو سر کښې دري ځلَ ځما دَپارَ اختر کوه ۱۵ دَ پتیري ۱۴ ۱۵
ډوډيِ اختر یاد لره- ته تر اوورځو پوري لکه چه ما در ته حکم کړي
دي پتیره ډوډيُ خوره دَ ابیب په میاشتې کښې په مقرّر وقت باندِ ځکه

چه ته په هغې کښې له مصر نه بهر راغلي يې - او ځما مخې ته دِ څوک خالي
۱۶ لاس نه راځي ۱۶ او دَ لَوْ اختر دَ خپل محنت وړومبيْ غله چه تا په
خپل پټي کښې وکړله - او هم اختر دَ جمع کولو په آخر دَ کال کښې په
۱۷ هغه وقت چه تا اجمع کړله له پټي نه دَ خپل محنت غله ۱۷ ستا ټول
سړي دِ درې ځل هر کال دَ يَهُوَهْ الله په مخ کښې حاضريږي
۱۸ ۱۸ ته ځما دَ خپلې قربانيْ وينې له خميره ډوډيْ سره مه نذر
۱۹ کوه - او ځما دَ اختر وازده دِ تر صبا پورې نه پاتي کيږي ۱۹ وړومبيِ غله
ستا دَ زمکي ستا دَ خداوند الله کور ته حاضروه - ته ورغومي دَ خپلې مور
په پيو کښې مه پخوه
۲۰ ۲۰ گوره زه فرښته ستا په مخ کښې ليږم چه په لارِ کښې ستا
۲۱ ساتندويکي وِي او تا هغه ځاي ته چه ما تيار کړي دي راولي ۲۱ دَ هغې
په مخ کښې هښيار اوسه او دَ هغې خبره اوره او له هغې نه مخالفت
مه کوه ځکه چه هغه به ستا خطا و نه بخښي ځکه چه ځما نوم په هغې
۲۲ کښې دي ۲۲ ليکن که په رښتيا دَ هغې خبره و مني او هغه ټول چه زه
درته وايم وکړي نو زه به ستا دَ دشمنانو دشمن او دَ مخالفانو مخالف
۲۳ يم ۲۳ ځما فرښته به ستا دَ وړاندِ لاره ښيي او اموريانو او حتيانو او
فرزيانو او کنعانيانو او حويانو او يبوسيانو له به دِ بوزي - او زه به هغوي
۲۴ ووژنم ۲۴ دَ هغوي خدايانو ته سجده مه کوه نه دَ هغوي عبادت او
نه دَ هغوي په شان کار کوه بلکه هغوي بالکل ونړوه او دَ هغوي بتان
۲۵ مات کړه ۲۵ او دَ خداوند خپل الله عبادت کوه او هغه به ستا په خوراک
سکاک کښې برکت کيږدي او زه به ستاسو له مينځ نه ناجوړتيا لري کړم
۲۶ ۲۶ ستا په ملک کښې به نه زيانمنه وِي نه شنډه - زه به ستا عمر
۲۷ پوره کړم ۲۷ زه به خپله ويره ستا دَ وړاندِ وليږمَ - زه به ټول خلق چه
په هغوي بانډې به ته راځي ووژنم او زه به داسي وکړم چه ستا دَ دشمنانو
۲۸ به تا ته شا کړم ۲۸ او هم ستا دَ وړاندِ به زه ډانډاري مچۍ وليږم چه

حوي او کنعاني او حِتِّي ستا له مخي نه وباسي ۲۹ زه به يه يو کال کښ ۲۹
هغوي ستا له مخي نه لري نه کړم ځکه چه چرې نه وِي چه زمکه
ورانه شِي او دَ ميدان ليوګان ستا په مخ کښ ډير شِي ۳۰ زه به هغوي ۳۰
لږ لږ ستا له مخي نه وشړم ترهسي حدَ پورې چه ته به زيات شي
او دَ زمکي وارث به شي ۳۱ زه به دَ قلزم له درياب نه دَ فلسطينيانو ۳۱
تر سمندرَ پورې او له بيابان نه تر سيندَ پورې ستا حدونَ وټړم
ځکه چه دَ زمکي اوسيدونکي به ستا په لاس کښ حواله کړم او ته به
هغوي له خپلي مخي نه وشړي ۳۲ له هغوي سره او دَ هغوي له خدايانو ۳۲
سره عهد مه تړه ۳۳ هغوي دِ ستا په زمکه کښ نه اوسي چرِ نه وِي ۳۳
چه تا ما ته ګنهګار کړِي ځکه که ته دَ هغوي دَ خدايانو عبادت وکړي
نو دا به ستا دَپارَ يو دام شي ❊

## څليرويشتم باب

۱ هغه موسیٰ ته ووِ چه خداوند څخه وخيژه ته او هارون او ناداب ۱
او ابيهو او دَ بنِي اسرائيلو له مشرانو نه اويا تنَ تاسو له لري نه سجده
وکړئِ ۲ او موسیٰ دِ يوازي خداوند ته نزدي شِي ليکن هغوي دِ نه نزدي ۲
کيږِي- او نه به قوم ور سره خيژِي ۳ او موسیٰ راغي دَ خداوند دَ ټولو ۳
خبرو او دَ عدالتونو بيان يُ خلقو ته وکړ- نو ټولو خلقو په يو آواز سره
جواب ورکړ او و يُ ويل چه هغه ټولي خبري چه څه خداوند ويلي دِي
مونږ به يُ وکړُو ۴ نو موسیٰ دَ خداوند ټولي خبري وکښلي او سحر ته وختي ۴
پورته شه او دَ غرهِ دَ لاندِ يُ يو قربانګاه او دولس ستني برابر له
دولسو فرقو دَ بنِي اسرائيلو يُ جوړي کړلي ۵ او هغه دَ بنِي اسرائيلو ۵
ځوانان وليږل چه دَ سوزَولو قربانئِ وخيژولي او دَ سلامتئِ حلالي له
غويانو نه دِ دَخداوند دَپارَ حلالي کړي ۶ او موسیٰ نيمي وِيني واخستي په ۶
لوښو کښ يُ کښيښوي او نيمي وِيني يُ په قربانګاه باندِ چړقاوُ کړي
۷ بيا يُ دَ عهد کتاب واخست او خلقو ته يُ ولوست او وايُ وراوه ۷

هغوي ووِ هغه هر څه چه خداوند وېلي دِي مونږ به ئې وکړو او تابع
۸ به اوسو ۸ موسیٰ هغه وِينه واخسته په هغو خلقو ئې چړقاؤ کړه او
و ئې ويل چه دَ عهد وِيني ته وګوره چه خداوند دَ دي ټولو خبرو
۹ دَپاره له تاسو سره کړي وه ۹ نو موسیٰ او هارون او ناداب او ابيهو او
۱۰ اويا مشران دَ بني اسرائيلو پورته وختل ۱۰ او هغوي دَ اسرائيل الله وليد
دَ پښو لاندِ ئې لکه جړاؤ کړي شوي دَ نيلم په شان وه او دَ هغه
۱۱ صفائي دَ آسمان په څير وه ۱۱ او دَ بني اسرائيلو په اميرانو ئې خپل لاس
کښي نه ښود- هغوي الله وليد او وئې خوړل او وئې څښل
۱۲ ۱۲ او موسیٰ ته خداوند ووِ چه په غره باندِ ما له راشه او هلته پاتي
شه او زه به تا له دَ کڼو تختئ او هغه تورات او احکام چه ما ليکلي دِي
۱۳ درکړم چه ته هغه وښيي ۱۳ موسیٰ او دَ هغه خادم يشوع پورته شول
۱۴ او موسیٰ دَ الله په غره باندِ وختل او هغه مشرانو ته ئې ووِ چه تاسو
حصار شئ څمونږ دَپارَ تر هغه چه بيا تاسو ته بيرته راشو- اوګورئ هارون
او حور تاسو څخه دِي که دَ چا څه کار وِي نو هغه دِ هغوي لره ورځي
۱۵ ۱۶ ۱۵ نو موسیٰ په غره باندِ وخوت او وريځي غر پټ کړ ۱۶ او دَ خداوند جلال
دَ سينا په غره باندِ قرار شه او وريځي تر شپږو ورځو پوري ئې پټ
۱۷ کړي وه او په اومه ورځ ئې له وريځي له مينځ موسیٰ وباله ۱۷ او ښکاره
کيدلِ دَ جلال دَ خداوند په شان دَ سوزوونکي اور دَ بني اسرائيلو په نظر
۱۸ کښ دَ غره په سر باندِ ښکاره شو ۱۸ او موسیٰ په وريځ کښ ننوت
په غره وخوت-او موسیٰ څلويښت ورځي اوڅلويښت شپي په غره کښ وه+

## پنځويشتم باب

۲-۱ ۱ او خداوند موسیٰ ته خبري وکړي و ئې ويل ۲ چه بني اسرائيلو ته
ووايه چه هغوي دِ ما له دَ پورته کولو پيشکشي راوړي- له هر سړي نه
۳ چه په زړه سره نفل کوي تاسو څما دَ پورته کولو پيشکشي واخلئ ۳ او
دا هغه دَ پورته کولو پيشکشي ده چه تاسو به ئې له هغوي نه واخلئ-سره زر

٤ او سپین زر او زیړ تم او آسمان رنګي او ارغواني او قرمزي رنګ او نري
٥ کتان او د بزو وزغني ٥ او د ګډو سره رنګ کړي کوڼي او د سګلاهو
٦ څرمني او د شتیم لرګي ٦ او د ډیوي دپار تیل او د مښلو د تیلو
٧ دپار مصالحه او د سوزولو د خوشبوئي دپار ٧ سلیماني کاڼي او کاڼي
٨ د غمي د اَفود دپار او د سینه‌بند دپار ٨ او هغوي دِ خما دپار مکان مقدس
٩ جوړ کړي چه زه په هغي کښ اوسم ٩ ټبني د مسکن او د هغه د
ټولو اسبابونو ټبني لکه چه زه ئي درته وښیم هم دغه‌سي ئي تاسو
ټول جوړ کړئ

١٠ ١٠ او د شتیم د لرګي دِ یو صندوق جوړ کړي چه اوږدوالي ئي
دوه نیم لاسَ او پلنوالي ئي یونیم لاس او دنګوالي ئي یونیم لاس وي
١١ ١١ او ته هغه په خالصو زرو کښ ونغاړه. هغه له دننَ او له باهرَ
ونغاړه. او د پاسَ پرِ یو طرف ته بل طرف ته د سرو زرو کنګره جوړه
١٢ کړه ١٢ او ته د هغي دپار څلور کړئ د سرو زرو ولي کړه د هغي په
څلورو پښو باندِ دوه کړئ یو طرف ته دوه کړئ بل طرف ته ولګوه
١٣ او ته دوه بازوګان د شتیم له لرګي نه جوړ کړه او په سرو زرو کښ
١٤ ئي ونغاړه ١٤ ته د هغي صندوق په ډډو کښ دا بازوګان په هغو
١٥ کړو کښ ورکړه چه صندوق پرِ پورته کړي ١٥ بازوګان دِ د صندوق
١٦ په کړو کښ وي وکښلي دِ تر نه شي ١٦ او په صندوق کښ هغه
١٧ عهدنامه چه زه به ئي درکوم کیږده ١٧ او هم له خالصو سرو زرو نه
کفورت جوړ کړه چه اوږدوالي ئي دوه نیم لاسَ وي او پلنوالي ئي یونیم
١٨ لاس ١٨ او ته د سرو زرو دوه کروبیاني جوړي کړه له ټکولي شوي کار نه د هغي
١٩ کفورت دواړو سرونو ته جوړي کړه ١٩ یوه کروبي یو سر ته او بله کروبي
بل سر ته جوړه کړه د یوي ټوکري د کفورت سره دواړه کروبیاني دواړو
٢٠ سرونو ته جوړي کړئ ٢٠ او هغو کروبیانو دِ خپل وزرو نه پورته غوړولي
وِي چه هغوي په کفورت په خپلو وزرو سره سوري کړي. د دوي

٢١ مخونَ دِ یو بل ته مخامخ وِي - او دَ کروبیانو مخونَ دِ کفاره‌گاه ته وِي ٢١ او
ته هغه دَ کفاره‌گاه دَ صندوق دَپاسَ کیږده او هغه عهدنامه چه زه
٢٢ به يئ تا له درکوم په صندوق کښ کیږده ٢٢ او هلته به زه در سره
ملاقات وکړم - او له تا سره به له مینځ دَ هغو دوارو کروبیانو نه چه دَ
عهدنامي په صندوق باندِ پرتي دِي دَ کفاره‌گاه دَپاسَ دَ هرڅیز په حق
کښ چه تا ته دَ بني‌اسرائیلو دَپارَ حکم کوم خبري وکړم

٢٣ ٢٣ او ته دوه لاسَ اوږد او یو لاس پلن او یونیم لاس پورته دَ
٢٤ شَتِیم له لرګي نه یو میز هم جوړ کړه ٢٤ او هغه په خالصو زرو کښ
٢٥ ونغاړه او ته تر یوه خوا بله خوا دَ سرو زرو نه کنګره جوړه کړه ٢٥ او
ته په هغي دَپاسَ یو سپتي قدر ګیرچاپیر سوربه ولګوه او ته په هغي
٢٦ سوربي باندِ ګیرچاپیر کنګره جوړه کړه ٢٦ او دَ هغي دَپارَ څلور کړيُ دَ
سرو زرو جوړي کړه او هغه کړيِ دَ هغه په څلورو کونجونو باندِ چه
٢٧ په څلورو پښو باندِ دِي ولګوه ٢٧ هغه کړيُ دِ له سوربي سره نزدي
٢٨ وِي چه دَ هغه میز دَ وچتولو دَپارَ بازوګانو له ځاي وِي ٢٨ او ته
بازوګان دَ شَتِیم له لرګي نه جوړ کړه او ته هغوي په سرو زرو کښ ونغاړه
٢٩ چه میز په هغوي باندِ پورته کړي شي ٢٩ او ته دَ هغه لوښي او څمڅيُ او کاسي
٣٠ او جاموَنَ دَ تویولو دَپارَ دَ خالصو زرو نه هغوي له جوړ کړه ٣٠ او ته په
میز باندِ دَ نذر ډوډيِ څما دَ وړاندِ همیشه ږده

٣١ ٣١ او له خالصو زرو نه ډیوټ جوړ کړه - ډیوټ دِ سره دَ هغه
دَ بیخه او دَ هغه ډنډيِ دَ ټکولي شوي کار نه دِ جوړ کړي شي دَ هغه
کټوري او دَ هغه شکوفي ګلونَ بي له یوي ټوټي نه دِ وي ٣٢ او شپږ
٣٢ ښاخونه دِ دَ هغه له ډډو نه وتلي وِي - دري ښاخه دِ دَ ډیوټ له یوي ډډي
٣٣ نه او دري ښاخه دِ دَ ډیوټ له بلي ډډي نه ووزي ٣٣ دري کټوري جوړ کړي
شوي دَ بادامي ګلونو په شان په یوه ښاخ کښ یوه شکوفه او یو ګل او دري
کټوري جوړ کړي شوي دَ بادامي ګلونو په شان په بل ښاخ کښ یوه

شګوفه او يو ګل هم دغه شان په شپږو ښاخونو کښں چه دَ ډيوټ نه وتلي
٣٤ وِي ٣٤ او په ډيوټ کښں څلور کټورِي جوړي کړِي شوِي دَ بادامِي ګلونو په شان
٣٥ شګوفِئ او ګلونه ئ ٣٥ او يوه شګوفه دِ دَ دوه ؤ ښاخونو دَ لاندِ وِي هم له
هغي نه - او يوه شګوفه دِ دَ دوه ښاخو دَ لاندِ وِي هم له هغي نه - او يوه شګوفه
دِ دَ دوه ؤ ښاخو دَ لاندِ وِي هم له هغي نه دَ شپږو واړو ښاخو دَپارَ چه
٣٦ له ډيوټ نه وتلي دِي ٣٦ دَ هغه شګوفي او دَ هغه ښاخونَ دا ټول دِ هم
٣٧ له هغه نه وِي - او دا ټول دِ له خالصو سرو زرو ټکولو شوِيو نه وِي ٣٧ او
اوه ډيوي وله جوړي کړه - او هغوي به دَ هغي ډيوي بلي کړِي چه دَ هغه په
٣٨ روبرو رڼا وِي ٣٨ او ګلګير او دَ هغه لوښي له خالصو سرو زرو نه دِ وِي
٣٩ ٤٠ ٣٩ هغه دِ له خپلَ ټولَ اسبابَ سره له يو قنطار نه جوړ شِي ٤٠ او وګوره
هغه برابر له هغي نښي سره چه تا ته په غره کښں ښکاره شوي ده جوړ کړه ❊

## شپږويشتم باب

١ ١ او ته دَ مسکن دَپارَ لس پردي جوړي کړه له نرو ريشلو کتانو نه له
آسماني رنګو او ارغواني رنګو او قرمزي رنګو سره دَ کروبيانو دَ کاره له کاريګرو
٢ ئ جوړ کړه ٢ او اوږدوالي دِ دَ هري پردي اته ويشت لاسَ او پلنوالي دَ هري
٣ پردي دِ څلور لاسَ وِي - ميچ دَ هري پردي دِ يو همره وِي ٣ پنځه پردي دِ له
٤ يو بل سره پيوستي وِي او پنځه پردي دِ له يو بل سره پيوستي وِي ٤ او
په پلو دَ يوي پردي به کناره دَ هغي دَ پيوستون آسماني رنګي پلوانښي
جوړي کړه - او هم دا رنګ په بهر پلو کښں دَ هغي دويمي پردي دَ پيوستون
٥ په طرف کښں جوړي کړه ٥ پنځوس پلوانښي په يوه پرده کښں جوړي
کړه او پنځوس پلوانښي دَ بلي پردي په هغه طرف کښں چه په دويم
٦ پيوستونکي دِي جوړي کړه - او پلوانښي دِ له يو بل سره مخامخ وِي ٦ او ته پنځوس
غوټئ دَ سرو زرو جوړي کړه او يوه پرده له بلي سره په هغو غوټو باندِ
٧ يو ځاي کړه چه يو مسکن شِي ٧ او ته دَ بزو له وړغوني نه پردي جوړي کړه
دَدي دَپارَ چه دَ مسکن دَپاسَ تمبو شِي - او ته له هغي نه يو لس پردي

٨ جوړي کړه- ٨ اوږدوالي دَ هري پردي دِ ديرش لاسَ او پلنوالي دَ هري پردي
٩ دِ څلور لاسَ وِي- يو ميچ دِ دَ يولسو وارو پردو وِي ٩ او ته پنځه پردي په
يو ځاي کښ او شپږ پردي په بل ځاي کښ سره يو ځاي کړه- او شپږمه
١٠ پرده دَ تنبو په مخ کښ دوبغرګه کړه ١٠ او ته پنځوس پلوانبي دَ يوي پردي
په پلوکښ چه بهر ده دَ پيوستون په طرف او پنځوس پلوانبي دَ پردي په
١١ کناري چه بهر ده دَبلي په پيوستون کښ ١١ او پنځوس غوټي دَ زيړو جوړي کړه
او دا غوټي په هغو پلوانبو کښ ورکړه او ټولي راټولي کړه چه يو تنبو شِي-
١٢ ١٢ او هغه اوږانده حصّه دَ تنبو دَ پردو نه چه پاتي کيږِي يعني هغه نيمه پرده
١٣ چه پاتي کيږِي دَ مسکن دَ وروستو دِ اوږاندي وِي ١٣ او هغه لاس چه په يو
طرف باندِ دي او هغه لاس چه په بل طرف باندِ دي له هغه نه چه پاتي
کيږِي په اوږدوالي کښ دَ خيمي له پردو نه دَ مسکن په دډه باندِ په دي دډه
١۴ او په هغي دډه به اوږانډ وِي دَ پټولو دَپارَ ١۴ او ته دَ هغي تنبو دَپارَ دَ
بزو له سرو کړو ګوړو نه يو بالاپوش جوړ کړه- او دَ ټولو دَ پاسَ دَ
سَګ لاهوانو له څرمنو نه
١٥ ١٥ او دَ مسکن دَپارَ داسي تختي چه ودرولي شِي دَ شِتيم
١٦ له لرګي نه جوړي کړه ١٦ اوږدوالي دَ هري تختي دِ لَس لاسَ او
١٧ پلنوالي دَ هر يوي تختي دِ يونيم لاس وِي ١٧ او هري تختي لره
دِ دوه چوړه وِي هر يو له بل سره برابر- او دا دَ مسکن په ټولو
١٨ تختو کښ وکړه ١٨ او دَ مسکن دَپارَ تختي جوړي کړه شل تختي
١٩ سُهَيل طرف ته ښي لاس ته ١٩ او ته څلويښت دَ چوړ موږي دَ سپينو
زرو دَ شلو تختو دَ لاندِ جوړه کړه دوه دَ چوړ موږي دَ يوي تختي
دَ لاندِ دَ هغي دَ دوارو چوړونو دَپارَ او دوه دَ چوړ موږي دَ
٢٠ بلي تختي دَ لاندِ دَ هغي دوارو چوړونو دَپارَ ٢٠ او دَ مسکن
٢١ دَ دويم طرف دَپارَ چه قطب دَي شل تختي ٢١ او دَ هغوي دَپارَ
څلويښت دَ چوړ موږي دَ سپينو زرو دوه دَ چوړ موږي دَ يوي

تختي دَ لاندِ او دوه دَ چورِ موږي دَ بلي تختي دَ لاندِ ۲۲ او دَ مسکن دَ ورستو ۲۲
نمرخانه طرف ته شپږ تختي جوړي کړه ۲۳ او دوه تختي دَ مسکن دَ کونټونو ۲۳
ورستو طرف ته جوړي کړه ۲۴ او دوي به دوچند کښته شي - او هم ۲۴
دا رنګ له پورته نه به یو شي په یوه کړۍ کښ او داهسي دِ دَ دوارو دَ پارَ
وِي او دوي به دَ دوارو کونټونو دَ پارَ وِي ۲۵ نو اته تختي به وِي او دَ چورِ ۲۵
موږي دَ سپينو زرو وِي سپاړس دَ چوړ موږي او دوه دَ چورِ موږي
دَ یوي تختي دَ لاندِ وِي او دوه دَ چورِ موږي دَ بلي تختي دَ لاندِ وِي-
۲۶ او اړمونَ دَ شِتيم له لرګي نه جوړ کړه پنځه دَ مسکن دَ یو طرف دَ ۲۶
تختو دَ پارَ ۲۷ او پنځه اَړمونَ دَ مسکن دَ بل طرف دَ تختو دَ پارَ او پنځه ۲۷
اړمونَ دَ مسکن دَ بل طرف دَ تختو دَ پارَ ورستو حصه نمرپرېواته ته
۲۸ او دَ مېنځ اړم چه دَ تختو په مېنځ کښ دي له یو سرَ تر بل سرَ ۲۸
پوري دِ وِي ۲۹ او دا تختي په زرو سره ونغاړه او اړمونو له دَ سرو زرو ۲۹
کړۍ جوړي کړه او اړمونَ هم په سرو زرو کښ ونغاړه ۳۰ او نه مسکن چه ما ۳۰
درته په غره کښ ښولي وه هم په هغه طريقه جوړ کړه
۳۱ او ته یوه پرده اسماني رنګي او ارغواني او قرمزي رنګي او مهينه ۳۱
دَ غښتو کتانو جوړه کړه له کروبيانو سره- په کار دَ کارِيګرو دِ جوړه
کړي شي ۳۲ او ته دَ شِتيم په څلورو ستنو په سرو زرو نغښتو شويو ۳۲
باندِ اوېزانده کړه - کنډي دِ ئي دَ سرو زرو وِي په څلورو دَ چورِ موږو
دَ سپينو زرو ۳۳ او پرده په غوټو اوېزانده کړه - او دَ عهد نامي صندوق ۳۳
هلته پردي ته دننَ ننباسه او دا پرده به تاسو دَ قُدس او دَ قُدسُ الاَقدَس
په مېنځ کښ جدايي وِي ۳۴ او کفاره ګاه دَ عهدنامي دَ صندوق دَ پاسَ ۳۴
په قُدسُ الاَقدَس کښ کېږده ۳۵ او مېز له پردي نه بهر او ډيوټ ۳۵
دَ مېز په مخامخ سهيل طرف ته دَ مسکن کېږده - او مېز قطب طرف ته
کېږده ۳۶ او ته یوه پرده دَ تمبو دَ دروازي اسماني رنګي او ارغواني او ۳۶
قرمزي رنګي دَ ريښلو کتانو کښيده کړي جوړه کړه ۳۷ پنځه ستني دَ ۳۷

پړدي دَپارَ دَ شَتِيمَ له لرګي نه جوړي کړه او وني نغاړه په سرو زرو
بانديِ دَ هغي غوټيِ دِ دَ سرو زرو وِي او ته پنځه دَ چوړ موړيِ دَ زيړو
دَ هغو دَپارَ وِيلي کړه ⁘

# او ويشتم باب

۱ آ او ته دَ شَتِيمَ له لرګي نه يو قربانګاه جوړ کړه اوږدوالي دَ هغي دِ پنځه
لاسَ او پلنوالي دَ هغي دِ پنځه لاسَ مذبح به څلور کونږي او اوچتوالي
۲ دَ هغه دِ دري لاسَ وِي ۲ او په څلورو کونجونو ني ښکرونَ جوړ کړه-اوهغه
۳ ښکرونَ دِ ني هم له هغه نه وِي-او ته هغه په زيړو ونغاړه ۳ او دَ
هغه دَايرو وړلو دَپارَ ديګونَ ني او بيلونَ ني او کنډولونَ ني او سيخونَ
۴ نيُ او دَ اور لوښي ني جوړ کړه-او ته ټول اسباب دَ زيړو جوړ کړه ۴ او دَ
هغه دَپارَ يو نغري جالي‌دار له زيړو نه جوړ کړه او ته په هغي جال کښ
۵ څلور کړيِ دَ زيړو دَ هغه په څلورو وارو کونجونو بانديِ ولګوه ۵ او هغه
دننه دَ موړيو نه لانديِ دَ مذبح نه کيرچاپير لانديِ دا هسي کيږده چه جال
۶ دَ مذبح نيمي ته ورسيِ ۶ او دَ قربانګاه دَپارَ دَ شَتِيمَ له لرګي نه
۷ بازوګان جوړ کړه او هغه په زيړو ونغاړه ۷ او ته هغه بازوګان په
کړو کښ ننباسه - دَ قربانګاه دوارو طرفونو ته دِ هغه بازوګان دَ پورته
۸ کولو دَپارَ وِي ۸ او ته هغه له تختو نه دَدُ جوړ کړه- لکه چه تا ته په
غره کښ ښولي شوي وه هم دغه شان دِ ني هغوي جوړ کړي

۹ ۹ او ته دَ مسکن دَپارَ يو غولي جوړ کړه سهيل طرف ته ښي لاس
ته- دَ غولي دَپارَ دِ پړدي له نرو ريشلو کتانو نه وِي چه اوږدوالي ني سل
۱۰ لاسَ په يو طرف کښ وِي ۱۰ او دَ هغي ستني دِ شل او دَ چوړ موړيِ
دِ ني شل له زيړو نه وِي - دَ هغي ستنو کُنډي او بندونَ له سپينو
۱۱ زرو نه جوړ کړه ۱۱ او هم دغه‌سي ته دَ قطب طرف دَپارَ پړدي جوړي
کړه اوږدوالي دَ هغو دِ سل لاسَ او شل ستني ني او شل دَ چوړ
موړيِ دِ ني له زيړو- او کُنډي دَ ستنو او دَ هغو بندونَ دِ دَ سپينو

۱۲ زرو وِي ۱۲ او په پلنوالي کښ دَ غولي نمر پرېواته طرف ته دِ دَ پنځوسو لاسو
۱۳ پردي وِي او ستني دِ يُ لس او دَ څور موړي دِ يُ لس وِي ۱۳ او پلنوالي
۱۴ دَ غولي دِ نمرخاته طرف ته پنځوس لاسَ وِي ۱۴ او پردي دَ يو طرف پنځلس
۱۵ لاسَ وِي- دري دَ ستني وِي او دري دَ څور موړي ۱۵ او دَ بل طرف دَ پردو
۱۶ اوږدوالي دِ پنځلس لاس دري دِ ئي ستني او دري دِ يُ دَ څور موړي وِي ۱۶ او دَ
غولي دَ دروازي دَپارَ يوه پرده چه شل لاسَ وِي آسماني رنګي اوارغواني او
قرمزي رنګي او دَ نرو ريشلو کتانو دَ کښيده کونکي له کار نه دِ وشي - او
۱۷ ستني دِ يُ څلور او دَ څور موړي دِ ئي څلور ۱۷ او دَ غولي ګيرچاپير دِ ټولي
ستني له سپينو زرو نه بند شي کُنډي دِ يُ له سپينو زرو وِي او دَ څور
۱۸ موړي دِ يُ دَ زيړو وِي ۱۸ اوږدوالي دَ غولي دِ سل لاسَ او پلنوالي دِ يُ پنځوس
لاسَ هرځاي او دنګوالي دِ يُ پنځه لاسَ- له نرو ريشلو کتانو نه وِي-او دَ
۱۹ څور موړي دِ ئي له زيړو نه وِي ۱۹ او دَ مسکن ټول لوښي چه په هر خدمت
کښ ئي پکاريږي او دَ هغه ټول ميخونَ او ټول ميخونَ دَ غولي دِ ئي له زيړو
نه وِي

۲۰ ۲۰ او ته بني‌اسرائيلو ته حکم وکړه چه دَ خونانو تکولي شوي خالص
۲۱ تيل در له راوړي دَدي دَپارَ چه ډيوه هميشه بله وِي ۲۱ او دَ جماعت
په خيمه کښ بهر له هغي پردي نه چه دَ عهدنامي دَ وړاندِ ده هارون
او دَ هغه ځامن دِ له نماښامَ تر صبا پوري مخامخ دَ خداوند دِ هغه
په ترتيب سره وکړي- دا قانون دِ په بني‌اسرائيلو کښ پيړئِ په پيړئِ
هميشه وِي ٭

## اتويشتم باب

۱ ۱ او ته هارون چه ستا ورور دَي ځان ته را وبله او ځامن ئي ورسره
دَ بني‌اسرائيلو له مينځَ دَ کوهن‌والي دَپارَ چه ځما خدمت کړي يعني
هارون او ناداب او ابيهو او اليعازر او ايتامار دَ هارون ځامن
۲ ۲ او ته پاکي جامي دَ هارون دَپارَ چه ستا ورور دَي دَ عزت او دَ

۳ بښائيست دَپارَ جوړي کړه ۳ او ته هغو ټولو دانادلو ته چه ما دَ دانائِي
په روح ډک کړِي دِي ووايه چه هارون له جامي جوړي کړِي دَ هغهٔ دَ
پاکولو دَپارَ او دَ کوهن والِي دَپارَ چه ځما خدمت کوِي په کوهن والِي کښې -
۴ ۴ او هغه جامي چه به جوړوي سينه بند او افود او فرغل او ګُلدار
قميص او پګړئِ او کمربند دَي - نو پاکي جامي دِ ستا ورور هارون له
او دَ هغه ځامنو له جوړي کړِي دَدي دَپارَ چه ځما دَ کوهن والِي دَپارَ
۵ خدمت کوِي ۵ او هغوي دِ سره رر او اسمانِي رنګي او ارغوانِي رنګي او
قرمزِي رنګي او نرِي کتان واخلِي
۶ ۶ نو افود دِ له سرو زرو او له اسمانِي رنګ او له ارغوانِي رنګ
او قرمزِي رنګ او له نرِي ريشلِي کتان نه چه هوښيار اودلي وِي جوړ
۷ دِ کړِي ۷ او دَ هغه په دوارو اوږو باندِ دِ دَ هغه په دوارو سرونو باندِ
۸ دِ پټيئِ ولګوِي دَدي دَپارَ چه هغه پرِ يوځاي شِي ۸ او هغه کښيدهٔ کمربند
چه په هغه باندِ دَي دَ هغه دَ ترلو دَپارَ دَ هغه کار په شان دَ يوي
ټکړي به شِي له سرو زرو او له آسمانِي رنګ او له ارغوانِي رنګ او له
۹ قرمزِي رنګ او له نرِي ريشلِي شوِي کتان نه ۹ او ته دوه دَ جزع جواهر
واخله او په هغو باندِ دَ بنِي اسرائيلو نومونه وکنه ۱۰ شپږ نومونَ له
هغو نه په يو جواهر کښِ او شپږ پاتي شوِي په بل جواهر کښِ دَ هغوي
۱۱ له پيدائښت سره برابر ۱۱ په کاڼِي دَ مهرکند په کاريګرئِ سره موافق
دَ ګوتي دَ مهرکندي په دوارو جواهرو باندِ وکنه موافق دَ نومونو دَ بنِي اسرائيلو
۱۲ او هغه دَ سرو زرو په کورونو کښِ ولګوه ۱۲ او دواړه کاڼِي دَ افود په
دوارو اوږو باندِ کيږده - چه دَ بنِي اسرائيلو دَ يادګارئِ دَپارَ کاڼِي وِي
او هارون به دَ هغوي نومونَ په خپلو دوارو اوږو باندِ دَ خداوند مخي ته
دَ يادګارئِ دَپارَ وړِي
۱۳ ۱۴ ۱۳ او کورونَ نِي ته له سروزرو نه جوړ کړه ۱۴ او دوه پلوانښي له سروزرو نه له
غښتلِي پړِي په شان جوړي کړه او دواړه غښتي شوِي پلوانښي له هغو کورونو سره

۱۵ ته واچوه ۱۵ او ته دَ عدالت سینه‌بند چه له کاریگرو اودلي شوي وِي دَ
افود په شان زرِي او اسماني رنگي او ارغواني رنگي او قرمزي رنگي او له بَرِي
۱۶ ریشلِي کتان نه جوړ کړه ۱۶ او چه دا څلور کونجیزَي او دوبغرگ وِي -
۱۷ اوږدوالي دَ هغه دِ یو لویشت او پلنوالي دَ هغه دِ یو لویشت وِي ۱۷ او
ته په هغي کښ جواهر جړاؤ کړه څلور کرښي دَ جواهرو کرښه له عقیقَ
زیړ یاقوتَ او له سره عقیقَ دا به اوله کرښه شِي ۱۸ او په دویمه کرښه
۱۹ کښ زَمَرُّد او صَفِیر اَو اَلماس ۱۹ او دریمه کرښه حَجَرِ یَمانِي او کاهرُبا او
۲۰ جَمَسْت ۲۰ او په څلورمه کرښه اَزرق او جَزْعَ او یَشَب او دَ سرو زرو
۲۱ په کورونو کښ دِ لگولِي وِي ۲۱ دا جواهر دِ برابر له نومونو دَ بني‌اسرائیلو
سره دَ هغوي دَ نومونو همره دولس وِي - دَ کوتي دَ نقش په شان دِ
۲۲ هریو موافق دَ خپل نوم دَ دولسَ فرقو دَپارَ دِ شِي ۲۲ او په هغه
سینه‌بند باندِ دوه پلوانبي دَ پړِي په شان غښتي شوي له خالصو
۲۳ زرو نه جوړي کړه ۲۳ او ته دَ سینه‌بند دَپارَ دوه کړِئ دَ سرو زرو
جوړي کړه او هغه دوه کړِئ دَ سینه‌بند په دوارو کونجونو باندِ ولگوه
۲۴ ۲۴ او دواړه پلوانبي غښتي شوي دَ سرو زرو په هغو دوارو کړو
کښ چه دَ سینه‌بند په دوارو کونجونو کښ دِي ولگوه ۲۵ او هغه
نوردواړه سرونَ دَ غښتو پلوانبو دَ هغو دوارو کانړو له کورونو سره
۲۶ ولگوه او دَ افود په اوږو باندِ يُ مخي ته اویزاند کړه ۲۶ او دَ سرو
زرو دوه کـــړِئ جوړي کړه - او ته هغَه دَ سینه‌بند په دوارو طرفونو
کښ دَ هغه په پلو کښ چه دَ افود له دَننه طرف سره یو ځاي کیدوني
۲۷ دِي ولگوه ۲۷ او ته دَ ســـرو زرو دوه کړِئ جوړي کړه - او هغَه
په دوارو پټو باندِ دَ افود نه لاندِ مخ کښ طرف ته دَ هغه دَ یو ځاي
۲۸ کیدو په ځاي کښ دَ افود دَ زرِي کمربند دَپاسَ ولگوه ۲۸ او هغوي
دِ سینه‌بند دَ هغه په کړو کښ او دَ افود په کړو کښ یو تار اسماني رنگي
واچوي و دِ يُ تړي دَپارَ دَدي چه دَ افود دَ زرِي کمربند دَپاسَ وِي

۲۹ او سینه بند له افود نه و نه بنویږي ۲۹ او هارون به نومونَ دَ بني
اسرائیلو په وقت دَ ننوتو دَده کښ مُقَدَس مقام وته دَ خداوند په مخ
کښ په سینه باندِ په سینه بند دَ عدالت کښ دَ یادَولو دَپارَ همیشه
۳۰ پورته لوړِي ۳۰ او په سینه بند دَ عدالت کښ اوریم او تمیم کیږده دَپارَ
دَدي چه په زړه دَ هارون باندِ دَده دَ ننوتو په وقت کښ مخامخ دَ
خداوند وِي- نو هارون دِ دَ بني‌اسرائیلو عدالت په خپل زړه باندِ دَخداوند
په مخ کښ همیشه پورته لري
۳۱ ۳۱ او ته دَ افود فرغل جوړ کړه-او هغه بټول دِ له اسماني رنګو نه
۳۲ وِي ۳۲ او دَ هغه ګریوان دِ دَ هغه په مینځ کښ دَ سر دَپارَ وِي- او
اودلي شوي غاړه ګیرچاپیر دَ ګریبان لکه چه ګریبان دَ زغري چه شلیدي
۳۳ نه شي ۳۳ او ته انار دَ هغه په لمنو باندِ له اسماني رنګو او ارغواني رنګو
او قرمزي رنګو نه جوړ کړه-کیرچاپیر دَ هغه دَ لمنو او ته کیرچاپیر دَ
۳۴ سرو زرو جرَسُونَ په هغو کښ جوړ کړه ۳۴ یو جرَس دَ سرو زرو او یو
انار او بل جرَس دَ سرو زرو او یو انار دَ فرغل په لمن کښ دَ هغه
۳۵ په کیرچاپیر کښ دِ وِي ۳۵ او هغه به په هارون باندِ وِي دَ خدمت
دَپارَ- نو آواز به دَ هغه دَ ننوتو په وقت کښ په قدس کښ دَخداوند
مخامخ او دَ وتو په وقت کښ اوریدي شي دَ دي دَپارَ چه هلاک نه شي
۳۶ ۳۶ او ته یوه تخته له خالصو سرو زرو نه جوړه کړه او په هغي
۳۷ باندِ دَ کوټي دَ نقش په شان دا وکنه چه قُدس دَ یَهوَه دَپارَ دي ۳۷ او
ته هغه په اسماني رنګ تار باندِ وتړه چه هغه په پګړۍ باندِ دَ پګړي مخي
۳۸ طرف ته وِي ۳۸ او دا دِ دَ هارون په وچولي باندِ وِي دَپارَ دَدي چه
هارون ګناه دَ پاکو څیزُونو چه بني‌اسرائیل يي په ټولو پاکو هدیو خپلو
کښ پاکوي پورته کړي-او دا دِ دَ هغه په وچولي باندِ همیشه وِي دَدي
۳۹ دَپارَ چه دَ خداوند په مخ کښ هغوي قبول شي ۳۹ او ته قمیص له نرو کتانو
کلدار جوړ کړه-او پګړۍ له نرو کتانو نه او هم کمربند کښیده جوړ کړه-

۴۰ ۴۰ او دَ هارون دَ ځامنو دَپارَ قمیصونَ جوړ کړه او هم دَ هغو دَپارَ
۴۱ کمربندونَ او هم دَ عزّت او د ښائست دَپارَ ټوپۍ جوړي کړه ۴۱ او دا
ټول ستا ورور هارون ته او د هغه ځامنو ته له هغه سره واغوندوه
او ته هغوي مسح کړه او هغوي خاص کړه او هغوي ټول پاک کړه ددي
۴۲ دَپار چه دَ کاهنانو په عهده کښ ما لره خدمت کوي ۴۲ او ته هغوي
له دَ کتانو پرتوګونَ جوړ کړه چه دَ هغوي برېنډوالي پټ کړي - له ملا نه
۴۳ تر زنګنونو پوري ۴۳ په هارون او دَ هغه په ځامنو هغه وقت چه دَ
جماعت مسکن ته راځي یا چه دوي مذبح ته دَپارَ دَ پاک ځاي دَ
خدمت راځي وي دي - دَدي دَپارَ چه هغوي په قُدس کښ خدمت
کوي او ګنهګار نه شي او هلاک نه شي - دا قانون دَ هغه دَپارَ او
له هغه نه پس دَ هغه دَ اولاد دَپارَ تر ابدَ پوري دِ وي ※

# نهویشتم باب

۱ ۱ او هغه کار چه ته به يې دَ هغوي دَپارَ وکړي دَدي دَپارَ چه هغوي
پاک شي او ما ته خدمت وکړي په کوهنوالي کښ یو ځوندر او دوه ګډان
۲ بي‌عیب واخله ۲ او پتیري ډوډۍ او پتیر ککوړۍ تیل په کښ ګډ کړي
او پتیري چپاتۍ په تیلو غوړي - او ته دَ غنمو له میدي نه دا ټولي
۳ پخي کړه ۳ او ته دا په یوه ټوکرۍ کښ کېږده - دَ هغه په هغي ټوکرۍ
۴ کښ له ځوندرَ او له هغو دواړو ګډانو سره راوړه ۴ بیا هارون
او د هغه ځامن دَ جماعت دَ مسکن دَ دروازي دَ وړاندِ راوله او
۵ هغوي په اوبو ولمبوه ۵ او ته جامي واخله او هارون ته قمیص واغوندوه
او چوغل دَ افود او افود او سینه‌بند او هغه دَ افود په کښیده کمربند
۶ وتړه ۶ او ته هغه پګړۍ دَ هغه په سر باندِ وتړه او دَ قُدس تاج دَ پګړۍ
۷ دَپاسَ کېږده ۷ او ته دَ مسحو تیل واخله او دَ هغه په سر باندِ تويي
۸ کړه او هغه مسحَ کړه ۸ بیا دَ هغه ځامن راوله او قمیصونَ هغوي ته
۹ واغوندوه ۹ او له هغوي نه یعني له هارون نه او دَ هغه له ځامنو

نه کمربدونَ چاپیره کړه او ټوپئ ورته په سر کړه چه کوهنوالي دَدوي په
١٠ حق کښ قانون ابدي وي او هارون او دَ هغه ځامن پاک کړه ١٠ بیا ته
هغه څخوندر دَ جماعت دَ مسکن دَ وړاندِ راوله او هارون او د هغه ځامن
١١ دِ خپل لاسونَ د هغه څخوندر په سر کیږدي ١١ او هغه دَ خداوند په
١٢ مخ کښ دَجماعت دَ مسکن په دروازه باندِ حلال کړه ١٢ او دَ هغي څخوندر
له وینو نه څه قدر واخله او په خپلي ګوتي باندِ ئي د مذبح په ښکرو باندِ
١٣ ولګوه. او باقي وینه دَ مذبح په ویخ کښ توي کړه ١٣ او ته دَ هغه ټوله وازده
چه لړمون پټوي سره دَ جلي دَ اینئ دَ پاسه او دواړه پښتورګي او هغه وازده
١٤ چه په هغو باندِ ده واخله او په مذبح دَپاسَ ئي وسیزه ١٤ او دَ څخوندر
غوښي او دَ هغه څرمن او دَ هغه غوشایه بهر دَ لښکره وسیزه ځکه
١٥ چه دا قرباني دَګناه ده ١٥ بیا ته یو ګډ واخله او هارون او دَ هغه
١٦ ځامن دِ خپل لاسونَ دَ هغه ګډ په سر باندِ کیږدي ١٦ او ته هغه
ګډ حلال کړه او ته دَ هغه وینې واخله په مذبح باندِ او چاپیره تړ
١٧ چړقاو کړه ١٧ او ته دَ ګډ اندام اندام جدا کړه لړمون او پښي ئي ووینځه
١٨ او دَ هغه اندامونه او سر سره جمع کړه ١٨ او ته هغه ټول ګډ په
مذبح باندِ وسیزه دا دَ خداوند دَ سوزولو قرباني ده دَ خوشبوئي دَ خداوند
١٩ دَپارَ دَ اور قرباني ده ١٩ بیا ته بل ګډ واخله او هارون او دَ هغه ځامن
٢٠ دِ خپل لاسون دَ هغه ګډ په سر باندِ کیږدي ٢٠ او ته هغه ګډ حلال کړه
او ته دَ هغه له وینو نه واخله او دَ هارون دَ ښي غوږ په نرمئ باندِ او
دَ هغه دَ ځامنو دَ ښي غوږونو په نرمو باندِ او دَ ښي لاسونو په غټو
ګوتو باندِ او دَ ښو پښو په غټو ګوتو باندِ ولګوه. او ته وینې په مذبح
٢١ باندِ او له هغه نه چارچاپیره چړقاو کړه ٢١ او ته هغه وینه چه په
قربانګاه باندِ ده او دَ مسحلو تیل واخله او هغه په هارون او دَ هغه
په جامو باندِ او له هغه سره دَ هغه په ځامنو او دَ ځامنو په جامو
باندِ چړقاو کړه ددي دَپارَ چه هغه او دَ هغه جامي او له هغه سره

دَ هغه ځامن او ذ هغه دَ ځامنو جامي پاکي شي ٢٢ او ته دَ گډ وازده او لم ٢٢
او هغه وازده چه دَ هغه لرمون پټوي او جلئ دَ اینې او دوه پښتورگي
او هغه وازده چه په هغو ذپاس دَه او ښي وَلي واخله ځکه چه دا
گډ دَ تخصِيص دَي ٢٣ او يوه ډوډئ او يو کلوري دَ غوړي ډوډئ او ٢٣
يوه نري ډوډئ له هغي ټوکرئ نه چه دَ خداوند په مخ کښ ده ٢٤ او ته ٢٤
دا ټول دَ هارون په لاسونو باند او دَ هغه دَ ځامنو په لاسونو باند
کيږده او هغه دَ خوځولو دَ پيشکشئ دَپارَ دَ خداوند په مخ کښ وخوځوه ٢٥ او ٢٥
ته هغه دَ هغوي له لاسونو نه واخله او په مذبح دَپاس ئي وسيزه ذ دې
دَپارَ چه خوشبوئي دَ خداوند دَ وړاند او دَ خداوند دَپارَ دَ اور قرباني دَه ٢٦ او ٢٦
ته سينه دَ هغه گډ چه دَ هارون دَ پاکولو دَپارَ دَه واخله او ته هغه
دَ خداوند په مخ کښ دَ خوځولو دَ قربانئ دَپاره وخوځوله او دا به ستا
حصّه دي ٢٧ او سينه دَ خوځولو پيشکشئ چه خوځولي شوي دَه او ٢٧
اوږه دَ پورته کولو پيشکشي چه پورته کړي شوي ده له هغه گډ نه
چه دَ هارون دَ تقديس او دَ هغه دَ ځامنو دَپارَ پاکئ کړه ٢٨ دا به دَ ٢٨
هارون او دَ هغه دَ ځامنو دَپارَ له ټولو بني اسرائيلو نه تراَبدَ پوري
حق دي ځکه چه پورته کړي شوي پيشکشي ده - او دا پورته کړي شوي
پيشکشي دَ بني اسرائيلو نه دَ هغوي دَ سلامتئ له پيشکشو
له قربانيو نه ده - او دا پورته کړي شوي پيشکشي خداوند لره ده ٢٩ او ٢٩
هغه دَ قدس جامي چه دَ هارون دي دَ هغه دَ ځامنو دَپارَ دَ پس
له هغه نه دي چه په هغو کښ مسح کولي او پاکولي به شي ٣٠ اوه ورځي ٣٠
دِ هغه ځوي چه دَ هغه په ځاي کوهن دي هغه واغوندي هغه
وقت چه په قدس کښ دَ خدمت کولو دَپارَ دَ جماعت په مسکن کښ
ننوزي ٣١ او ته دَ تخصِيص گډ واخله او دَ هغه غوښي په مقدّس ځاي ٣١
کښ پخې کړه ٣٢ او هارون او دَ هغه ځامن دِ دَ گډ غوښي او هغه ٣٢
ډوډئ چه په ټوکرئ کښ دي دَ جماعت دَ مسکن په دروازه باند

۳۳ وخوري ۳۳ او هغه څیزونَ چه له هغي نه کفاره شوي دَه و دِ خوري
دَ دي دَپارَ چه پاک او قدُّوس نې کړي مګر اجنبي دِ له هغو نه
۳۴ نه خوري څکه چه هغه څیزونَ پاک دِي ۳۴ او که تر صبا پوري دَ
تَخصِیص له غوښي او له ډوډيِ نه څه پاتي شي نو ته دَ هغه چه باقي
۳۵ پاتي شي وسیزه چه و نه خوري شي څکه چه پاکي دِي ۳۵ او ته دَ
هارون او دَ هغه دَ څامنو دَپارَ څنګه چه ما در ته موافق دَ ټولو حکم
۳۶ کړي دَي وکړه او اوه ورځي هغوي پاک کړه ۳۶ او ته هره ورځ څخوندر
دَ پیشکشيِ دَ ګناه دَ کفاري دَپارَ حلالوه او پس له کفاري کولو نه
۳۷ مذبح پاکوه ته هغه مسح کوه چه پاکیږي ۳۷ ته دَ مذبح دَ پاکولو دَپارَ اوه
ورځي کفاره ورکړه نو مذبح به ډېره پاک شي او چه څوک سري به هغه
باندِ لاس ولګوِي نو هغه به پاک شي

۳۸ ۳۸ و ته او دا هغه دي چه ته به مذبح باندِ قرباني وکړي دوه ګډوري
۳۹ یو کلني ورځ په ورځ ۳۹ یو ګډوري صبا ته قرباني کوه او بل ګډوري
۴۰ بیګا ته قرباني کوه ۴۰ او سره دَ یو ګډوري لسمه حِصّه دَ میدي چه اغښلي
شوي وِي په څلورمه حصّه دَ هِین دَ ټلولو تیلو او یو څلورمه حصّه
۴۱ دَ هِین دَ مَي دَ تویولو دَ پیشکشيِ دَپارَ ۴۱ او بل ګډوري ته قرباني کړه
په نماښام کښ او ته ورسره دَ صبا دَ پیشکشيِ په موافق او دَ
هغه دَ تویولو دَ پیشکش په موافق وکړه دَ خوشبوئِ دَپارَ دَ اور
۴۲ قرباني دَ خداوند دَپارَ ۴۲ دا به همیشه دَ سوزولو قرباني ستاسو پیړيِ په پیړيِ
دَ جماعت دَخیمي په دروازي باندِ دَ خداوند دَ وړاندِ وِي او هلته به زه له
۴۳ تا سره ملاقات وکړم چه زه له تا سره خبري وکړم ۴۳ او زه به هلته له
بني اسرائیلو سره ملاقات وکړم او هغه به څما په لوئيِ پاک کړي
۴۴ شي ۴۴ چه زه به دَ جماعت مسکن او مذبح پاک کړم- او زه به
هارون او دَ هغه څامن پاک کړم چه هغوي څما په کوهن والي کښ
۴۵ خدمت وکړي ۴۵ او په بني اسرائیلو کښ به اوسم- او زه به دَ هغوي

الله يم ۴۶ او هغوي به پوه شي چه زه خداوند د هغوي الله يم چه هغوي م ۴۶
د مصر له ملک نه بهر کړل د دي دپاره چه زه د هغوي په مينځ کښې
اوسم زه خداوند د هغوي الله يم +

## ديرشم باب

۱ او ته يوه مذبح د بخور د سيځلو دپاره جوړ کړه - او ته هغه د شتيم ۱
له لرګي نه جوړ کړه ۲ اوږدوالي د هغي يو لاس او پلنوالي د هغي يو لاس ۲
څلور کوټيزي دِ وي - او دنګوالي د هغي دِ دوه لاس او ښکر د هغي
دِ هم له هغي نه وي ۳ او ته هغه په خالصو سرو زرو کښې ونغاړه ۳
او د هغي چت او د هغي چاپيره ديوالونه او د هغي ښکر - او ته کنګري
د سرو زرو چاپيره د هغي دپاره جوړې کړه ۴ او ته دوه کړيِ د سرو زرو ۴
د کنګري د لاندِ د هغي په دوارو ډډو باندِ چه د هغي په دوارو طرفونو
باندِ وي جوړې کړه دپاره د دي چه هغه ځايونه شي د بازوګانو دپاره چه
په هغو پورته کولي شي ۵ او ته بازوګان د شتيم له لرګي نه جوړ کړه ۵
او ته هغه په سرو زرو کښې ونغاړه ۶ او ته هغه په مخ کښې د هغي ۶
پردي چه د عهدنامي صندوق څخه ده د کفاره ګاه د وړاندِ چه د
عهدنامي دپاسه دي هغه ځاي چه زه به له تا سره ملاقات کوم
کيږده ۷ او هارون به په هغي باندِ هر صبا سوزوي - هغه وخت ۷
چه ډيوي تيارَوي ۸ او هر کله چه هارون په نماښام کښې ډيوه بلوي ۸
بخور دِ سوزوي دا به ئي د خداوند د وړاندې ستاسو په زمانه کښې هميشه
وي ۹ تاسو به په هغه باندِ پردي بخور يا د سوزولو قربانيِ يا ميدي ۹
د پيشکشيِ مه سوزونيِ او د تويولو پيشکشي په هغي باندِ
مه تويوئي ۱۰ او هارون به په کال کښې يو ځل په هغي ښکرونو باندِ ۱۰
کفاره ورکوي سره د وينې د خطا د قربانيِ د کفاري په کال کښې
يو ځل به ستاسو په پيړو کښې په هغي باندِ کفاره ورکوي - دا د
خداوند دپاره قدس الاقداس دي

١١-١٢ ١١ او خداوند موسیٰ ته وفرمایل وئي ویل ١٢ هر کله چه ته
بني اسرائیل شماري نو موافق دَ هغوي چه شمارلي شوي دي نو هغوي
دِ هر سري کفاره ورکړي دَ خداوند دَ خپل ځان دپارَ هر کله چه ته
١٣ ئي وشماري دَ هغوي په شمېرلوکښ به په هغوي وبا را نه شي ١٣ هرڅوک
چه په شمارکښ شامل دي هغه دِ نیم مثقال له مُقَدَّس مثقال نه
ورکوي- مثقال شل جیره دي پس نیم مثقال به خداوند له ورکړي شي
١٤ ١٤ هر څوک چه په شمارکښ شامل دي که دَ شلو کالو وي یا دَ زیاتو
١٥ نو هغه به خداوند له دَ پورته کولو پیشکشي ورکوي ١٥ دَ خداوند دَ پورته کولو
پیشکش له نیم مثقالَ نه امیر دِ ئي زیاتوي او نه فقیر دِ ئي کموي
١٦ ستاسو دَ ځانونو کفاره کولو دپارَ ١٦ او ته دَ کفاري روپۍ له بني اسرائیلو
نه واخله او ته دَ جماعت دَ مسکن په خدمت کښ ئي ولګوه او دا
به دَ بني اسرائیلو دپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ یادګار شي او ستاسو دَ
ځانونو دَ کفاره کولو دپارَ
١٧ ١٨ ١٧ بیا خداوند موسیٰ ته وفرمایل وئي وِ ١٨ چه یو حوض له زیړو
نه او دَ هغه کرسۍ له زیړو نه دَ اوداسه دپارَ جوړي کړه او دَ جماعت
دَ مسکن او دَ قربانګاه تر مینځ ئي کېږده او په هغي کښ اوبه واچوه
١٩ ١٩ هارون او دَ هغه ځامن دِ خپل لاسونه او پښي په هغي ووینځي-
٢٠ ٢٠ هر کله چه دَ جماعت په مسکن کښ ننوځي نو په اوبو دِ ووینځي دَ دي
دپارَ چه مړه نه شي- یا چه قربانګاه ته نزدي ورشي دَ خدمت کولو دپارَ
٢١ سوزولو له دَ اور قرباني دَ خداوند دپارَ ٢١ هم دغه شان دِ خپل لاسونو
او خپلي پښي ووینځي چه هلاک نه شي دا به قانون شي همیشه دَ
دَ هغه دپارَ او دَ هغه دَ اولاد دپارَ دَ هغوي په پیړو کښ
٢٢ ٢٣ ٢٢ او خداوند موسیٰ ته وفرمایل وئي وِ ٢٣ چه ته ځان له عودِ
مصالحه واخله- یعني خالص مُر پنځه سوَ مثقالَ او دَ هغه په نیمه
یعني دوه نیم سوَ مثقالَ دارچیني او خوشبويَ عُود دوه نیم سوَ مثقالَ

۲۴ او سَلیخه پنځه سَو مثقال موافق له مثقالونو له مَقدَس او دَ خونه له ۲۴
تیلو نه یوهین ۲۵ او نه به ئي مُقدَّس تیل دَ مسح کولو دَپارَ عطر چه ۲۵
په ترکیب دَ عطارانو جوړ شوِي وِي جوړ کړي - دا پاک تیل به دَ مسح
کولو دَپارَ وِي ۲۶ او ته په هغي باندِ دَ جماعت دَ مسکن تنبو او دَ ۲۶
عهدنامي صندوق مسح کړه ۲۷ او هغه میز او دَ هغه ټول لوښي او ۲۷
ډیوټ او دَ هغه ټول لوښي ۲۸ او مذبح دَ بخور - او مذبح دَ سوزولو ۲۸
دَ قرباني او دَ هغه ټول لوښي او حوض او دَ هغه کرسيِ ۲۹ او ته هغه ۲۹
څیزونَ مُقَدَّس کړه دَدي دَپارَ چه هغه قُدس اَقدَس شِي او چه څوک
په هغه لاس ولګوِي نو پاک به شِي ۳۰ او ته هارون او دَ هغه ځامن مسح ۳۰
کړه او پاک ئي کړه دَدي دَپارَ چه هغوي ځما په کوهن‌والي کښِ خدمت ولَرِي
۳۱ او ته بني‌اسرائیلو ته حکم وکړه او ورته ووایه چه دا پاک تیل به ۳۱
دَ مسح کولو دَپارَ وِي - ما ته ستاسو په پیړو کښِ ۳۲ او دَ هیڅ سړِي ۳۲
په صورت دِ نوي نه کړي شِي - او تاسو داسي او دَ هغي په شان مه جوړوئ
ځکه چه دا مَقدَس دِي پس بنائي چه دا تاسو له مُقدَّس وِي ۳۳ او ۳۳
څوک چه ئي دَدي په شان جوړ کړي یا له هغي نه څه په اجنبي سړِي ولګوِي
نو هغه به له خپلَ قامَ پرِیکړي شِي

۳۴ او خداوند موسیٰ ته ووِ چه ته دَ ځان دَپارَ خوشبوِي یعني مِیعَهَ ۳۴
او اَظفارَ او قِنَّهَ خوشبوِي له خالصو لوبانو نه واخله او هر یو دِي په وزن
برابر وِي ۳۵ او له هغو نه بخور جوړ کړه خوشبو دَ عطارانو دَ ۳۵
ترکیب په شان مالګه کړي شوِي خالص او پاک جوړ کړه ۳۶ او له هغوي ۳۶
نه څه قدر باریک میده کړه او هغه دَ عهدنامي دَ وړاندِ دَ جماعت
په مسکن کښِ چه کوم ځاي زه له تا سره ملاقات کوم کیږده نو دا
به ستاسو دَپارَ قُدسُ الاَقدَس وِي ۳۷ او هغه بخور چه به ته جوړوي ۳۷
دَ هغي په شان ځانونو لره مه جوړوئِ - دا به ستاسو دَپارَ خداوند ځنځه
مُقَدَّس وِي ۳۸ هر سړي چه داسي دَ بویولو دَپارَ جوړوِي نو هغه ۳۸

به له خپلَ قامَ پریکړې شي ❊

# یودیرشم باب

۱-۲ ۱ او خداوند موسیٰ ته داسې ووِ ۲ چه گوره ما بَصَلئیل بن اوُرِي بن
۳ حُور دَ یهودا له فرِیق نه په نامې بللې دې ۳ او ما هغه دَالله په روح
ډک کړ چه په حکمت او په فهم او په علم او په هرقسم کاریگرۍ کښ
۴ ۴ دَدې دَپارَ چه دَ اوستاذیٔ دُ کارونو په پیدا کولو کښ او دَ سرو زرو
۵ او دَ سپینو زرو او دَ زېړو په کاریگرۍ کښ ۵ او دَ جواهرو په کندلو کښ
او په جړاوُ کولو کښ او دَ لرګي په توږلو کښ او په ټولو هنرونو کښ قابل
۶ شي ۶ او گوره چه ما له هغه سره اَهولیاب بن اَخیساماک دَدان له فرِیق
نه ملگرې کړې دې-او ما دَ ټولو روښان زړونو په زړونو کښ حکمت
۷ کښینو دَدی دَپارَ چه هغه چه ما تا ته وېلې دي جوړ کړي ۷ یعني دَ
جماعت دَ مسکن او دَ عهدنامې صندوق او هغه کفـــاره گاه
۸ چه پر هغه باندِ دي او ټول اسباب دَ مسکن ۸ او هغه میز سره دَ
هغه له لوښو او هغه پاک ډیوټ سره دَ هغه دَ ټولو لوښو او هغه
۹ مذبح دَ بخُور ۹ او هغه مذبح دَ سوزولو دَ قربانۍ دَ هغه دَ ټولو لوښو
۱۰ سره او حوض او دَ هغه کرسیٔ ۱۰ او دَ عبادت جامې او پاکې جامې هارون
کوهن لره او دَ هغه دَ ځامنو چه په کوهن والي کښ خدمت وکړي جامې
۱۱ ۱۱ او دَ مسح کولو تیل او خوشبویٔ بخُور دَمُقدِش دَپارَ- ځنگه چه ما در
ته حکم کړې دې هم هغه سې دِ جوړوي
۱۲ ۱۲ بیا خداوند موسیٰ ته خبرې وکړې و ئې ویل ۱۳ چه ته بني‌اسرائیلو
۱۳ ته ووایه چه تاسو ځما سَبتُونه ومنئ ځکه چه دا به ځما او ستاسو په مینځ
کښ ستاسو په پیړوکښ نښانه وي چه تاسو پوه شئ چه زه خداوند
۱۴ ستاسو پاکوونکې یم ۱۴ پس تاسو سَبَت ومنئ ځکه چه هغه ستاسو
دَپارَ پاک دې هر هغه څوک چه ئې ناپاکه وي هغه به ووژلې شي-
ځکه چه هر څوک چه په کښ څه کار وکړي هغه به له خپلَ قامَ پریکړې

۱۵ شِي ۱۵ شپږ ورځي به کار وکړي شي لیکن اومه ورځ سَبَتْ دَ آرام دي
او دَ خداوند دَپاره پاک دي هر څوک چه دَ سَبَتْ په ورځ کار کوي هغه
۱۶ به ووژلي شِي ۱۶ نو بني اسرائيل دِ سَبَتْ وساتِي. او هغه دِ پيړۍ
۱۷ په پيړۍ سَبَت دَ هميشه وعدي دَپاره ومنِي ۱۷ څما او دَ بني اسرائيلو تر
مينځ دا دَ هميشه نښه ده ځکه چه په شپږو ورځو کښ خداوند آسمان
او زمکه پيدا کړل. په اومه ورځ ئي آرام وکړ او دمه ئي وکړه
۱۸ ۱۸ نو هر کله چه خبري ئي تمامي کړلي په غره دَ سينا باندِ نو
موسیٰ ته ئي دوه تختيِ دَ عهدنامي تختيِ دَ کاڼِي دَ الله په گوتي کښلي
شوي وي ورکړي *

# دوديرشم باب

۱ ۱ او چه خلقو وليده چه موسیٰ دَ غره په کوزيدو کښ ډيل وکړ نو
خلق هارون ته جمع شول او ورته ئي ووِ چه پورته شه موږ له خدايان
جوړ کړه چه څمونږ دَ وړاندِ ځي ځکه چه دا موسیٰ هغه سړي چه موږ ئي دَ
مصر له ملک نه راوستلو موږ نه پوهيږو چه هغه څه وشه.
۲ ۲ هارون هغوي ته ووِ چه هغه دَ سرو موندري چه ستاسو دَ ښځو او
دَ ځامنو او دَ لوڼو په غوږونو کښ دي ماتي کړيِ او ما له ئي راوړيِ.
۳ ۳ نو ټولو خلقو هغه دَ سرو موندري چه دَ هغوي په غوږونو کښ
۴ وي ماتي ئي کړي او هارون له ئي راوړي ۴ نو هغه دَ هغوي له لاسونو
نه واخستي او دَ کندلو په کاڼي ئي وکنودلي او يوَ وِيلي شوي څخوندر
ئي جوړ کړ. نو هغوي ووِ چه اي بني اسرائيلو دا هغه ستاسو خدايان
۵ دِي چه ئي تاسو دَ مصر له زمکي نه وکښلِي يِئ ۵ او چه هارون دا
وليده نو دَ هغه په مخ کښ ئي يو مذبح جوړه کړه. او هارون جاروغږاوه
۶ او و ئي وِ چه صبا دَ خداوند اختر دي ۶ هغوي سحر نه وختِي پاسيدل
او دَ سوزولو قربانيِ ئي وخيژولي او دَ سلامتيا قربانيِ ئي دَ وړاندِ کړي. او
خلق خوړلو څښلو ته کښيناستل او بيا لوبو ته پورته شول

۷ ۷ نو خداوند موسیٰ ته ووِ چه ځه کوز شه ځکه چه ستا خلق
۸ چه تا دَ مصر له ملک نه راوستل خراب شول ۸ هغوي له هغې لارې
نه چه ما هغوي ته حکم کړې وه زر وجاروتل هغوي ځان لره ویلې
شوې ځخوندر جوړ کړې دې او هغوي هغه ته سجدې وکړې او قرباني ئې
وله وکړې او وئي ویل چه دا هغه ستاسو خدایان دِي اې اسرائیلو
۹ چه تاسو ئي دَ مصر له زمکې نه را وکښلِي يئِ ۹ بیا خداوند موسیٰ ته ووِ
۱۰ چه ما دا قام ولِید چه کلک ځټوَن ئُي دِي ۱۰ ته اوس ما پرېږده چه ځما
قهر به هغوي باندِ گرم شِي او هغوي فنا کړم او زه به له تا نه یو لوي
۱۱ قام جوړ کړم ۱۱ نو موسیٰ دَ خداوند خپل الله په مخ کښ زارِي وکړه و ئي
ویل چه اې خداوند ولې به خپل قهر په هغو خپلو خلقو باندِ چه تا په
خپل لوي زور او په خپل زورور لاس سره دَ مصر له ملک نه بهر
۱۲ کړِي دِي گرموي ۱۲ ولې به مصریان واېي چه هغه هغوي له دې ځاي
نه دَ بدئِ دَپارَ بوتلِي وُو چه هغوي په غرونو کښ ووژنِي او هغوي له
مخَ دَ زمکې نه ورک کړِي- دَ خپل گرم قهر نه بېرته اوسه او دَ خپلو خلقو
۱۳ له بدئِ نه وجاروزه ۱۳ ته هغه خپل بندگان ابراهیم اواسحاق اواسرائیل
یاد کړه چه له هغو سره تا هم پخپله قسم خوړلِي وه ویلِي دِ وُو چه زه
به ستاسو نسل دَ آسمان دَ ستورو په شان ډېر کړم او دا ټول ملک چه
ما ویلِي دِي زه به ئې ستاسو اولاد لره ورکړم چه تر ابدَ پورِي به دَ هغې
۱۴ وارثان وِي ۱۴ نو خداوند له هغې بدئِ نه چه ئي ویلِي وَه چه خپلو خلقو
نه به ئې رسوم پښېمانَ شَه

۱۵ ۱۵ نو موسیٰ په بېرته وجاروت او له غره نه کوز شه او دَ
عهدنامې دواړه تختئِ دَ هغه په لاس کښ وې- هغه تختئِ کښلِي شوي
۱۶ وې- دواړو طرفونو ته دې خوا نه او هغه خوا ته کښلِي شوې وې ۱۶ او هغه
تختئِ دَ الله له کارَ وې- او کښل دَ الله کښل وُو په تختو باندِ کنودلِي شوِي
۱۷ وُو ۱۷ او چه یشوع دَ خلقو دَ شور آواز واورېده نو موسیٰ ته ئې وویل چه

۱۸ په لښکر کښ دَ جنګ آواز دي ۱۸ او وئي ویل چه دا خو دَ برِي دَ شور
۱۹ آواز نه دي نه دَ لرِي دَ ماتي آواز دي بلکه دَ سندرو آواز زه اورم ۱۹ داسي
وشوه خو چه دي لښکر له راغي او ځخوندر او سندري ئي وليدي نو دَ
موسیٰ قهر ګرم شه او هغه تختئِ ئې له خپلو لاسونو نه وغورزولي او دَ
۲۰ غرِه دَ لاندِ ئي ماتي کړلي ۲۰ نو ځخوندر ئي چه هغوي جوړ کړي وه واخست
او هغه ئي په اور باند وسه او دَ خاورو په شان ئي ميده کړ او هغه
۲۱ ئي په اوبو باندِ و دوړوه او بني‌اسرائيلو ته ئي وڅښوه ۲۱ او موسیٰ هارون
ته ووِ چه دي خلقو له تا سره څه کړي وُو چه تا داسي لوي ګناه په
۲۲ هغوي باند راوړ ۲۲ هارون ووِ چه څما دَ صاحب قهر دِ نه ګرميږي-
۲۳ ته دا قام پيژني چه په بدئي کښ دي ۲۳ هغوي ما ته ووِ چه څمونږ دَ پاره
خدايان جوړ کړه چه څمونږ په مخ کښ ځي څکه چه دا موسیٰ هغه سړي چه
مونږ ئي دَ مصر له ملک بهر وکښلي يو مونږ نه پوهيږو چه هغه څه
۲۴ شه ۲۴ نو ما دوئي ته ووِ چه چا څخه چه سره زر وِي هغه دِ مات
کړي ما له دِ ئي راکړي نو هغوي ما له راکړه او ما هغه په اور کښ
۲۵ واچول نو دا ځخوندر ووت ۲۵ او چه موسیٰ خلق وليدل چه هغه
بي‌قيده دِي څکه چه هارون دوئي بي‌قيده کړي وُو له دي کبل چه
۲۶ دوي دَ خپلو دښمنانو په مخ کښ رسوا ښي ۲۶ نو موسیٰ دَ لښکر په دروازه
کښ ودريده او وئي ويل څوک چه دَ خداوند په طرف باندِ وِي نو ما له
۲۷ دِ راشي- نو ټول بني لاوِي هغه ځخه جمع شول ۲۷ او ور ته ئي ووِ چه
خداوند دَ اسرائيل الله داسي فرمايي چه له تاسو نه دِ هر سړي توره په
ملا وتړي او په لښکر کښ دِ دروازه په دروازه ګرزِي راګرزِي او هر يوَ
دِ خپل ورور او هر يوَ دِ خپل ملګري او هر يوَ دِ خپل ګاونډِي ووژني
۲۸ ۲۸ بني‌لاوِيو دَ موسیٰ دَ ويلو په شان کار وکړ- په هغي ورځي له خلقو
۲۹ نه قريب دري زرَ پريوتل ۲۹ او موسیٰ وُوِ چه نن ورځ دَ خداوند دَ پاره ځانونه
پاک کړئِ بلکه هر سړي دِ برخلاف له خپل زويَ او برخلاف له خپل

۳۰ وروړ نه چه هغه به نن تاسو له برکت درکړي ۳۰ او بله ورځ سحر ته
داسي وشوه چه موسیٰ خلقو ته وويل چه تاسو لويه ګناه کړي ده اوس
۳۱ زه خداوند له پورته ځم شايد چه زه ستاسو دَ ګناه کفاره وکړم ۳۱ موسیٰ
خداوند له په بيرته لاړ او وَ لې وويل چه افسوس چه دي خلقو لويه ګناه
کړي ده چه خپل ځان لره يې دَ سرو زرو خدايان جوړ کړي دي -
۳۲ ۳۲ اوس که دَ هغوي ګناه بخښي او که نه وي نو عرض دا دي چه ما
۳۳ له هغه کتاب نه چه تا کښلي دي ورک کړه ۳۳ خداوند موسیٰ ته وويل
چه هغه چا چه زما ګناه کړي ده زه به هغه له خپل کتاب نه ورک
۳۴ کړم ۳۴ او اوس ورځه خلق هلته چه ما در ته ويلي دي بوزه - ګوره زما
فرښته به ستا دَ وړاندې ځي - ليکن زه به دَ خپلي بدلي اخستو په ورځ دَ
۳۵ دوي دَ ګناه بدله له دوي نه واخلم ۳۵ او خداوند هغه قام وواهه په سبب
دَ هغه څخوندر چه دوي جوړ کړي وه چه هارون جوړ کړي وه ÷

# دري ديرشم باب

۱ ۱ او خداوند موسیٰ ته ووې چه ځه له دي ځايه وخيژه ته او هغه خلق چه
هغوي تا دَ مصر له ملک نه بهر کړي دي هغي ملک ته چه دَ هغي په
حق کښې ما له ابراهامَ او له اسحاقَ او له يعقوبَ سره قسم خوړلي و وې
۲ ويل چه زه به هغه ستاسو اولاد له ورکړم ۲ او زه به ستا په مخ کښې
فرښته ولېږم - او زه به کنعاني او اموري او حِتّي او فرزي او حوي او
۳ يبوسي وشړم ۳ هغي زمکي ته چه په هغي کښې پئ او شات بهيږي - زه
به ستاسو په مينځ لاړ نه شم ځکه چه تاسو سرکښه خلق يئ چرې نه وي چه
۴ تاسو په لار کښې هلاک نه کړم ۴ او چه قام دا بده خبره واوريده نو
۵ خپه شول او هيچا خپل کالي وا نه چول ۵ بيا خداوند موسیٰ ته ووې چه
بني اسرائيلو ته ووايه چه تاسو سرکښه خلق يئ که زه يوه لحظه په تاسو
کښې ختلي وي نو تاسو به م هلاک کړي وي - نو تاسو خپل کالي لرې کړئ
۶ او زه به ګورم چه له تاسو سره څه وکړم ۶ بني اسرائيلو حوريب څخه خپل

کالي لري کړل
۷ او موسیٰ خیمه واخسته او له لښکر نه بهر او له لښکر نه لري ۷
ئي ودروله اوۮ هغي نوم ئي ۮ جماعت خیمه کښیښووده - او داسي وشوه
خو چه چا به خداوند لټاوه نو له لښکر نه به بهر هغه ۮ جماعت
خیمي له ورته ۸ نو داسي وشوه چه موسیٰ خیمي طرف ته ووت نو ۸
ټول خلق پورته شول او هر سړي ۮ خپلي خیمي په دروازه باندِ ودریده
او موسیٰ پسي ئي کتل تر هغي چه خیمي ته ننوت ۹ او داسي وشوه ۹
چه موسیٰ خیمي ته ننوت نو ستنه ۮ وریځ راکوزه شوه او ۮ خیمي
په دروازي باندِ ودریده او خداوند له موسیٰ سره خبري وکړي ۱۰ او ټولو ۱۰
خلقو ستنه ۮ وریځ ۮ خیمي په دروازه باندِ ولاړه ولیده - و ټول خلق
به ولاړ وُو او سجدي به ئي کولي هر سړي خپلي دروازي ته ۱۱ او خداوند ۱۱
موسیٰ سره مخامخ خبري کولي لکه چه څوک له خپل دوستٙ سره خبري
کړي - او هغه ۮ لښکر ځاي ته وجاروت لیکن ۮ هغه خدمتگار یوځلمي
یشوع ځوي ۮ نُون له خیمي نه و نه وت
۱۲ او موسیٰ خداوند ته ووِ کوره چه ته ما ته وايي چه دا قام وخیژوه ۱۲
او ته ما ته نه ښیي چه څوک به را سره لیږي - سره له دي چه تا ویلي
دِي چه زه تا په نامه پیژنم او تا څما په نظر کښ نعمت موندلي ۮي
۱۳ نو اوس عرض دا ۮي که ما ستا په نظر کښ نعمت موندلي وِي ۱۳
نو ته ما ته خپلي لاري وښیه چه زه به تا یقین وکړم چه ما ستا په نظر
کښ نعمت موندلي ۮي - او کوره دا قام ستا خلق ۮي ۱۴ نو هغه ووِ ۱۴
چه څما مخ به درسره ځي او زه به تا له آرام درکړم ۱۵ نو ورته ئي ووِ
که ستا مخ راسره نه ځي نو موږ له دي ځايٙ مه بیایه ۱۶ او څنگه به ۱۶
معلومه شي چه زه او ستا قام ستا په نظر کښ نعمت موندلي یُو - ولي
ستا تله به له موږ سره نه وِي څه ؟ نو زه او ستا قام به له هغو ټولو
خلقو نه چه په مخ ۮ زمکي دِي جدا یُو

۱۷ ۱۷ خداوند موسیٰ ته ووِ هغه کار چه تا ویلي دي زه به يُ پوره کړم
ځکه چه ته څما په نظر کښ نعمت موندلي يي او زه تا په نامه پيژنم
۱۸ ۱۹ ۱۸ نو وئي وِ چه ما ته جلال خپل ښکاره کړه کله ته ۱۹ هغه ووِ چه زه
به خپلي ټولي خوبيُ ستا په مخ کښ تيري کړم- او زه به دَ خداوند دَ نامي
ستا په مخ کښ آواز وکړم- او زه به هغه چا چه رحيم يم رحم به وکړم
۲۰ او چه زه پرِ کريم يم په هغو به کرم وکړم ۲۰ او وئي ويل چه ته څما مخ نه
شي ليدي ځکه چه هيڅوک سړي نشته چه ما به ووينيِ او ژوندي به
۲۱ پاتي شي ۲۱ نو خداوند ووِ چه ګوره دا ځاي ما څخه دي او ته په ګټه بانديِ
۲۲ ودريږه ۲۲ او دا بي به وِي چه هر کله چه څما دَ جلال تيريده کيږي نو
زه به تا دَ هغي ګټ په چاود کښ کيږدم او تر هغه پوري چه څو تيرنه شم
۲۳ نو تا به په خپل لاس سره پټ کړم ۲۳ او زه له هغي نه به خپل لاس
پورته کړم نو ته به څما شا ووينيِ ليکن څما مخ هيڅري نه شي ليدي +

## څلور ديرشم باب

۱ ۱ بيا خداوند موسیٰ ته ووِ چه وتوږه دَ خپل ځان دَپارَ دوه تختيُ دَ کاڼي
دَ ورمبيو په شان نو زه به په هغو تختو بانديِ هغه خبري چه په ورمبنو
۲ تختو بانديِ وي چه تا ماتي کړي وي وِليکم ۲ او صبا ته تيار شه او وختي
۳ دَ سينا په غره بانديِ وخيژه او ما څخه دَ غره په سر بانديِ ودريږه ۳ او
له تا سره دِ هيڅوک سړي نه خيژيِ- او په ټول غره کښ دِ هيڅوک و نه
۴ ليدي شيِ- کنډکونَ او ګوهاري چه دَ غره طرف ته و نه څرولي شيِ ۴ نو
هغه دَ پخوانو په شان دوه تختيِ دَ کاڼو وتوږلي- او موسیٰ سحر ته
وختي لګه چه خداوند هغه ته ويلي وُو دواړه تختيُ دَ کاڼو په لاس کښ
۵ واخستي دَ سينا په غره بانديِ وخوت ۵ نو يَهُوَهْ په وريځ کښ راکوز شه
۶ او له هغه سره هلته ولاړ وه- او دَ خداوند دَ نامي جاړئُ وغږاوه ۶ نو
خداوند دَ هغه په مخ کښ تير شه او جاړئُ وغږاوه چه يَهُوَهْ يَهُوَهْ الله
او رحمٰن الرّحيم په غضب کښ متحمل او په مهربانيُ او په وفاداريِ کښ

۷ زیات دي ۷ ساتندونکي دَ مهربانئ دي تر زرګونو پوري - دَ ګناه او دَ
تقصیر او دَ خطا بخښونکي دي لیکن هغه به هرَ ګناه و نه بخښي
بلکه دَ پلرونو ګناه به په ځامنو باندِ او دَ ځامنو په ځامنو باندِ
۸ تر دریمي او څلورمي پیړئِ پوري راولي ۸ او موسیٰ جلتي وکړه او
۹ زمکي ته ئې سر ټیټ کړ او سجده ئې وکړه ۹ او وئي ویل چه که ما
اوس ستا په نظر کښ نعمت موندلي دي نو اي خداوندَ زه تا ته
زاري کوم چه خداوند دِ څمونږ په مینځ کښ لاړ شي ځکه چه دا
سرکښه خلق دي او څمونږ ګناهونَ او خطائي و بخښه او مونږ خپل
۱۰ میراث لره واخله ۱۰ نو هغه ووِ ګوره زه وعده کوم چه زه به ستا دَ ټول
قام دَ وړاندِ داسي لوي کارونَ وکړم چه داسي به په ټوله زمکه او نه
په هیڅ قوم کښ واقع شوي وِي - او ټول هغه خلق چه په کښ ته یي
دَ خداوند کار به ووِیني ځکه چه هغَه چه زه له تا سره کوم ویروونکي
۱۱ به وِي ۱۱ نن ورځ هر څه حکم چه زه تا ته کوم ته هغَه یاد کړه
ګوره چه زه اَموري او کِنعاني او حِتّي او فرزّي او حَوي او یَبُوسِي ستا
۱۲ له مخي نه وشړم ۱۲ هُښیار اوسه چه داسي و نه شِي چه ته دَ هغي
زمکي له اوسیدونکو سره چه ته ورله ځي عهد وتړي - چري نه وِي چه
۱۳ ستا په مینځ کښ دام شِي ۱۳ بلکه دَ هغوي دَ مذبح ځایونَ ونړوه
۱۴ او دَ هغوي ستني ماتي کړه او بتا ئې پریکړه ۱۴ ځکه چه ته دَ بل الله
عبادت مه کوه ځکه چه یَهُوَهٰ چه نوم ئې غَیّور دي غیرت ناک الله دي
۱۵ ۱۵ داسي و نه شِي چه ته دَ هغي زمکي له اوسیدونکو سره عهد وتړي او
چه هغوي دَ خپلو خدایانو په پیروئِ کښ زنا کوِي او دَ خپلو خدایانو
۱۶ دَیارَ قربانِي کوِي او ځوک دِ وبلي او ته دَ هغوي قربانئِ وخوري ۱۶ او ته دَ هغوي
لُونړه خپلو ځامنو لره راولي - او دَ هغوي لُونړه دَ خپلو خدایانو په پیروئِ
کښ زنا کوِي نو ستا ځامن به داسي کړِي چه زنا به کوِي دَ هغوي دَ
۱۷ خدایانو په پیروئِ کښ ۱۷ ته خپل ځان له ویلي کړِي شوِي خدایان مه جوړوه

۱۸ ۱۸ ته دَ پتيري دَ اختر ساتنه کوه. ته اوه ورځي پتيري ډوډئ لکه چه ما
تا ته حکم کړي دي دَ اَبيب دَ مياشتي په مقرر وقت کښ خوره ځکه چه
۱۹ ته دَ اَبيب په مياشتي کښ له مصر نه وتلي يي ۱۹ هر پرانتونکي دَ رحِم ځما
دي او ستا ټول څاروِي چه نران دِي ورنبي پيدا شوِي دَ غويي او دَ کډ
۲۰ ۲۰ او دَ خره دَ ورونبي کوچي په بدله کښ کډوري ورکړه او ته که يئ بدله
نه ورکوي نو دَ هغه څټ مات کړه. ته دَ خپلو ځامنو دَ ټولو ورونبو پيدا
شويو بدله ورکړه. او څوک دِ ځما په مخ کښ تش لاس و نه ليدي شي
۲۱ ۲۱ شپږ ورځي ته کار وکړه ليکن په اومه ورځ آرام وکړه. اګر که دَ يوي
۲۲ وقت يا دَ فصل دَ ريبلو وقت وِي آرام وکړه ۲۲ دَ غنمو دَ ورونبو وږو
دَ ريبلو نه دَ هفتو اختر کړه او اختر دَ درمندونو دَ اخستو په آخر دَ
۲۳ کال کښ ۲۳ ستا ټول نارينه دِ په کال کښ دري ځلَ دَ خداوند الله په
۲۴ مخ کښ چه دَ اسرائيل الله دَي حاضريږي ۲۴ ځکه چه زه به قامر ستا له
مخي نه وشړم او ستا سرحدونَ به ارت کړم. او چه په کال کښ دري ځلَ
دَ خداوند خپل الله په مخ کښ حاضريږِي نو هيڅوک سړي به ستا دَ زمکي آرزو
۲۵ و نه کړي ۲۵ مه قرباني کوه په خميره باندِ وِينه دَ قربانئ ځما او دَ اختر دَ فسح
۲۶ له قربانئ نه تر صبا پوري هيڅ باقِي مه پريږده ۲۶ ته دَ خپلي زمکي اوّل دَ
اوّلو ميوو نه دَ خداوند خپل الله کور ته راوړه. ورغومي دَ هغه دَ مور
۲۷ په پئو کښ مه پخوه ۲۷ او خداوند موسىٰ نه ووِ چه ته دا خبري وليکه.
ځکه چه برابر دَدي خبرو ما له تا سره او له اسرائيل سره وعده وکړه
۲۸ ۲۸ او هغه هلته څلوينبت شپي ورځي خداوند څخه وه هغه نه ډوډئ خوړله
او نه يئ اوبه څښلي. او هغه دَ هغي عهدنامي خبري هغه لس خبري
په تختو وکښلي
۲۹ ۲۹ دا رنګ وشوه چه موسىٰ راکوز شه دَ سينا له غره نه سره دَ
دوه تختو دَ عهدنامي دَ موسىٰ په لاس کښ چه له غره نه راکوز شه
نو موسىٰ خبر نه وه چه دَ مخ څرمن دَ هغه دَ خبرو له سببَ ځليده.

۳۰ ۳۰ چه هارون او ټولو بني اسرائيلو موسیٰ وليد نو ګوره چه دَ هغه دَ
۳۱ مخ څرمن ځليده او هغوي له نزديکت ذ هغه نه وويريدل ۳۱ موسیٰ
هغوي راوبلل۔ نو هارون او دَ جماعت ټول سرداران هغه ته په بيرته
۳۲ وګرزيدل۔ نو موسیٰ هغوي سره په خبرو شه ۳۲ اخر ټول بني اسرائيل
ورله نزدي راغلل او هغه دَ هغو ټولو خبرو چه خداوند هغه ته دَ سينا
۳۳ په غره باندِ ويلي وي هغوي ته حکم وکړ ۳۳ او چه موسیٰ له هغوي
۳۴ سره خبري وکړي نو هغه په خپل مخ باندِ پرده واچوله ۳۴ او چه موسیٰ
به خداوند له ته دَدي دَپارَ چه هغه سره خبري وکړي نو تر هغه پوري
چه لا بهر به نه راته پرده به ئي لري کوله۔ او چه څه حکم به شوي وه
۳۵ بهر چه به راغي بني اسرائيلو ته به ئي ووِ ۳۵ او بني اسرائيلو دَ موسیٰ
مخ وليد چه دَ موسیٰ دَمخ څرمن ځليده۔ او موسیٰ به په خپل مخ باندِ
بيا پرده اچوله تر هغه وقت پوري چه خبرو کولو له به ورته +

# پنځه ديرشم باب

۱ ۱ او موسیٰ دَ بني اسرائيلو ټول جماعت جمع کړِ ورته ئي ووِ چه دا
۲ دي هغه خبري چه په هغو باندِ دَ عمل کولو خداوند حکم کړِي ۲ شپږ
ورځي دِ کاروبار کولي شي۔ ليکن په اومه ورځ به تاسو له پاکه ورځ
شي دَ آرام سبت دَ خداوند دَپارَ هر څوک چه په هغي کښ کار وکړي نو
۳ و به وژلي شي ۳ تاسو دَ سبت په ورځ په خپلو ټولو کورونو کښ اور
مه بلوئِ

۴ ۴ او موسیٰ دَ بني اسرائيلو ټول جماعت ته خبري وکړي و ئي ويل
۵ هغه حکم چه خداوند ويلي دي دا دي ۵ و ئي ويل چه تاسو له خپلَ مينځَ يوَه
لرِه پيشکشيُ راوړِئ۔ هرڅوک چه دَهغه زړه نفل کوِي پيشکشيُ دِ خداوند له
۶ سرِه زر او سپين زر او زيړ راوړِي ۶ او آسماني رنګي او ارغواني او قرمزي
۷ رنګي او نرِي کتان او دَ بزو وڅغوني ۷ او دَ ګډو سره رنګ کړي څرمن او دَ
۸ سَنګلاخوانو څرمني او دَ شَتيمِ لرګي ۸ او دَ روښنائيُ دَپارَ تيل او مصالحه

۹ دَ مستکولو دَ تیلو دَپارَ او دَ خوشبو بخُور دَپارَ ۹ او جزع جواهر او په افودَ او
۱۰ په سینه‌بند باندِ دَ جړاؤ کولو دَپارَ جواهر ۱۰ اوچه په تاسو کښِ څوک دیر
۱۱ هوښیار وي نو را دِ شي اوچه څه خداوَند ویلي دِي ټول دِ جوړ کړي ۱۱ مسکن او
دَ هغه تنبو او دَ هغه غِلاف دَ غوټيُ او دَ هغه تختي دَ هغه اړیُونَ دَ
۱۲ هغه ستني او دَ هغه دَ چوُرِ موړي ۱۲ صندوق او دَ هغه بازوکان
۱۳ کفاره‌گاه او غِلاف ۱۳ او میز او دَ هغه بازوکان او دَ هغه ټول
۱۴ لوښي او دَ نذر ډوډيِ ۱۴ ډیوټ دَ رڼا دَپارَ او دَ هغه لوښي او دَ
۱۵ هغه ډِیوي او تیل دَ روښنائيِ دَپارَ ۱۵ دَ بخُور قربانگاه او دَ هغه بازوکان
۱۶ او دَ مښلو تیل او خوشبوئ بخُور او پړده دَ دروازي دَ مسکن دروازي څخه ۱۶ او
دَ سوزولو دَ قربانو مذبح او دَ هغه دَ زیړو جال او دَ هغه بازوکان او ټول
۱۷ لوښي دَ هغه حوض او بیخ دَ هغه ۱۷ هغه دَ غولي پړدي او ستني دَ هغه
۱۸ او دَ چوُرِ موړي دَ هغو او پړده دَ دروازي دَ غولي ۱۸ دَ تنبو میخُونَ او دَ
۱۹ غولي میخُونَ او رسيِ دَ هغو ۱۹ او مهیني جامي په مَقدِس کښ دَ خدمت
کولو دَپارَ مُقدّس لباس دَ هارون کوهِن دَپارَ او دَ هغه دَ ځامنو جامي
دَ کوهِنيِ دَ خدمت دَپارَ
۲۰ ۲۱ ۲۰ نو دَ بني‌اسرائیلو ټول جماعت دَ موسیٰ له مخي نه لاړل ۲۱ او هغوي
یو یو چه دَ چا زړه هغه ولمساوه او هر یو چه دَ چا روح دَ نفل قرباني وکړه
دَ جماعت دَ تنبو دَ کار دَپارَ او دَ هغي دَ ټول عبادت او دَ پاکو جامو دَپارَ
۲۲ دَ خداوَند دَ پورته کولو قرباني راوړه ۲۲ او هغه سړي او ښځي هر څو همره چه
نفل کونکي زړونَ ئي وُو راغلل او وَښي او موندري او کوټي او حمیلونَ او ټول
کالي دَ سرو زرو ئي راوړل او هر یو سړي دَ سرو زرو پیشکشي دَ خداوَند په
۲۳ مخ کښ راوړله ۲۳ اوچا څخه چه اسمانيِ رنګي او ارغواني رنګي او قرمزي رنګي
او نري کتان او دَ بزو وڼغوني او دَ ګډو سره رنګي څرمن او دَ سګ لاهو څرمني
۲۴ وي نو هغه ئي راوړي ۲۴ اوچاچه دَ سپینو زرو یا دَ زیړو پیشکشي ورانِدِ
کوله نو خپله پیشکشي ئي دَ خداوَند دَپارَ راوړه - او دَ چا چه دَ شِتیم لرګي وه

۲۵ نو هغه ئي دَ عبادت دَ ټولو کارونو دَپارَ راوړل ۲۵ او هغو ټولو ښځو چه
زړونَ ئي روښان وُو په خپلو لاسونو وريښل اوخپل ريښلي اسماني رنګي
۲۶ او ارغواني رنګي او قرمزي رنګي او نرې کتان ئي راوړل ۲۶ او هغو ټولو ښځو
چا ته چه دَ هغو زړونو دَ حکمت مِينه ورکړه دَ بزو وژغوني ئي وريشلي
۲۷ ۲۷ او سردارانو دَ جزع جواهر او جواهر جړاؤکولو له اُفودّ دَپارَ او دَ سينه بند دَپارَ
۲۸ ۲۸ او مصالحه او تيل دَ روښنائي دَپارَ او تيل دَ مشکولو دَپارَ او دَخوشبوئ
۲۹ دَپارَ ۲۹ او بني اسرائيلو څه ښځو او څه نرو چه دَچا زړه دَ نفل قرباني
غوښتله چه څه شئ راوړي دَ هغي کار دَپارَ چه دَ هغي دَجوړولو دَپارَ
خداوند ويلي وُو دَ موسىٰ په وسيله سره هغه دَ نفل قرباني پيشکشي دَ
خداوند دَپارَ راوړي

۳۰ ۳۰ او موسىٰ بني اسرائيلو ته ووِ کوريُ چه خداوند بَصَلئيل بن اوري
۳۱ بن حُور چه دَ يهودا له فرقي نه دي په نامه بللي دي ۳۱ او هغه ئي په روح
دَالله او په عقل او په فهم او په زيرکيُ او په هر قسم کاريګريِ ډک کړي دي
۳۲ ۳۲ او دَ سرو او دَ سپينو زرو او دَ زيړو په عجائبو کارونو جوړولو کښ —
۳۳ ۳۳ او دَجړاوولو دَپارَ دَ کاڼړو په توړلو کښ او دَ لرګي په توړلو کښ غرض
۳۴ دا چه دَ هر يو عجيبه کار په جوړولو کښ پوهه کړي دي ۳۴ او هغه دَ
هغه په زړه کښ چه وښيي اچولي دِي چه هغه اَهُولِياب بن اَخِيسامَاک
۳۵ چه دَ دان له فرقي نه دي ۳۵ او دَ هغوي زړونَ ئي له حکمت نه ډک کړي
دِي دَ دي دَپارَ چه ټول کار دَ کاريګريِ وکړي او دَ مصوّر او دَ نَقّاش او
دَ هغه کښيده کوونکي چه اسماني رنګي او ارغواني رنګي او قرمزي رنګي او دَ
نرو کتانو او هم دَ جولا کار کوي او هر قسم کاريګري جوړوي او دَ هغو
چه نوي تدبيرونَ پيدا کوي ❖

## شپږديرشم باب

۱ ۱ پس بَصَلئيل او اَهُولِياب به وکړي او ټول هوښيار زړوني خلق چه خداوند
حکمت او زيرکي هغوي له ورکړي ده دَ دي دَپارَ چه هغوي زده کړي کار دَ

جوړولو ټول کار دَ خدمت دَ مُقدِسْ موافق له هغي ټولو سره چه خداوندولي
دي
۲ ۲ نو موسیٰ بَضَلئیل او اَهُولیاب او هغه ټول هښیار زړوِني خلق چه دَ
چا زړونو هغوي له رغبت ورکړ چه کار له راشِي راوئي بلل چه هغه جوړ کړي -
۳ ۳ نو هغو به دَ موسیٰ له مخي نه هغه ټولي پیشکشئ اخستي چه بني اسرائیلو دَ مُقدِسْ
دَ عبادت دَ کارجوړولو دَپارَ راوړي وي - او هغوي به هر صباته دَ نفل قربانئ
۴ هغه له راوړلي ۴ نو ټول هښیاران چه دَ مُقدَّس ټول کارونَ ئي جوړول هر یو له
۵ خپل کارَ نه چه جوړولي ئي راغلل ۵ او هغوي موسیٰ ته خبري وکړي وئي ویل چه خلق
له حاجت نه زیات راوړِي دَ هغه کار دَ خدمت دَپارَ چه دَ هغه خداوند دَ جوړولو حکم
۶ کړي دَي ۶ نو موسیٰ حکم وکړ او هغوي په لښکرکښ آواز وکړ وئي وِ چه نه دِ سړي او
نه ښځه دَ مُقدَّس دَ پیشکشو راوړو دَپارَ نورڅه کار نه کړي - نو هغه قام له راوړو
۷ نه منعَ شول ۷ ځکه چه هغه اسباب چه ئي لاره دَ ټول کار دَ کولو دَپـارَ
کافي وه بلکه زیاتي وه
۸ ۸ او ټولو هښیار زړونو کارجوړونکو مسکن اولس پردي جوړي
کړي دَ نري ریشلِي کتان او دَ اسماني رنگ او دَ ارغواني رنگ او دَ قرمزي
۹ رنگ کروبیانو سره په کار دَ هوښیار کاریګر جوړي کړي ۹ اوږدوالي دَ هري
پردي اتویشت لاسَ او پلنوالي ئي دَ هري یوي پردي څلور لاسَ ټولي
۱۰ پردي په کچ کښ برابري وِي ۱۰ او پنځه واړه پردي ئي یوَ له بله سره یوَ
ځاي کړلي - او هغه نوري پنځه پردي ئي هم یوَ له بله سره یو ځاي کړلي
۱۱ ۱۱ او په کناره دَ یوي پردي دَ پیوستون پلو ته ئي اسماني رنگي پلوانبي جوړي
کړي او هم دا رنگ ئي په کناره دَ بلي پردي چه بهروَه په پلوکښ په بل
۱۲ پیوستون کښ جوړي کړلي ۱۲ پنځوس پلوانبي ئي دَ یوي پردي او پنځوس پلوانبي
دَ بلي پردي په پلوکښ په دویم پیوستون کښ ئي جوړي کړي چه پلوانبي
۱۳ یوَ دَ بل مخامخ وي ۱۳ او پنځوس غوټي ئي دَ سرو زرو جوړي کړي او
په دي غوټو ئي یوَه پرده له بلي سره یو ځاي کړله نو مسکن یوَ شه

۱۴ او دَ بزو له وڼغونو نه ئي پردي دَ تنبو دَپارَ دَ مسکن دَپاسَ جوړي کړي ۱۴
هغوي يوولس پردي جوړي کړي ۱۵ اوږدوالي دَ هري يوي پردي ديرش لاسَ ۱۵
او پلنوالي دَ هري يوي پردي څلور لاسَ يولس واړه پردي په يوه کچ وِي -
۱۶ او پنځه پردي په يوځاي کښ او شپږ په بل ځاي کښ يوځاي کړلي - ۱۶
۱۷ هغه پنځوس پلوابني په پلو کښ دَ هغي پردي چه بهر وه دَ پيوستُون په ۱۷
ځاي باندِ او پنځوس پلوابني دَ بلي پردي په پلو باندِ چه په بل پيوستُون کښ
وي جوړي کړي ۱۸ او پنځوس غوټيئ دَ زيړو ئي دَ تنبو دَ يوځاي کيدو دَپارَ ۱۸
چه يو شي جوړي کړي ۱۹ او يو سرپوښ دَ تنبو سور رنګ کړي دَ ګډو دَ ۱۹
څرمنو او بل سرپوښ ئي دَ سَکَ لاهوانو دَ څرمنو له پاسَ نه جوړ کړ
۲۰ او تختي دَ مسکن ئي دَ شَتِيم له لرګي نه دَ ودرولو دَپارَجوړي کړلي ۲۰
۲۱ اوږدوالي دَ هري تختي لَس لاسَ او پلنوالي دَ هري تختي يونيم لاس ۲۲ او ۲۱ ۲۲
هري تختي لره دِ دوه جوړه وِي هر يَو دَ بل سره برابر په داسي شان ئي تمامي تختي
دَ مسکن جوړي کړي ۲۳ او تختي ئي دَ مسکن دَپارَجوړي کړي شل تختي ئي ۲۳
دَ سهيل طرف دَپارَ بِني لاس ته ولکولي ۲۴ او څلويښت دَ چوُر موږي دَ ۲۴
سپينو زرو دَ هغو شلو تختو دَ لاندِ جوړ کړل دوه دَ چوُر موږي دَ دواړو
چوُروښو دَپارَ دَ يوي تختي دَ لاندِ او دوه دَ چوُر موږي دَ دوه وُ چوُروښو دَپارَ دَ
بلي تختي دَ لاندِ ۲۵ او بل طرف ته دَ مسکن قطب طرف لره ئي شل تختي ۲۵
جوړي کړي ۲۶ او څلويښت دَ چوُر موږي ئي دَ هغو له سپينو زرو نه دَ يوي ۲۶
تختي دَ لاندِ او دوه دَ چوُر موږي دَ بلي تختي دَ لاندِ ۲۷ نمر پريواته طرف ۲۷
ته دَ مسکن دَ شا دَپارَ ئي شپږ تختي جوړي کړي ۲۸ او دوه تختي ئي دَ ۲۸
مسکن دَ کونټونو دَپارَ په شا طرف جوړي کړي ۲۹ او هغه دواړه له لاندِ نه ۲۹
پيوستي وي او له پاسَ نه هم په يوَه کړيُ کښ وي- په دغه شان ئي دواړو
ته په دواړو کونټونو کښ جوړي کړي ۳۰ نو اته تختي وي او دَ چوُر موږي ئي دَ ۳۰
سپينو زرو شپاړس دَ چوُر موږي دَ هري يوي تختي دَ لاندِ دوه دوه دَ چوُر موږي
وُو ۳۱ او اَړمُونَ ئي دَ شَتِيم له لرګي نه جوړ کړل پنځه دَ تختي دَپارَ دَ ۳۱

٣٢ مسکن په يو طرف ٣٢ او پنځه اړمونه د تختو دپاره په بل طرف د مسکن او
٣٣ پنځه اړمونه د مسکن د تختو د شا طرف دپاره نمر پرېواته طرف ته ٣٣ او يو
اړم ئي جوړ کړ نو هغه ئي په مينځ کښ پوري راپوري له يو طرف نه تر بل
٣٤ پوري ننوبست ٣٤ او تختي ئي په سرو زرو ونغښتي او د هغوي کړئ ئي له
سرو زرو نه جوړي کړي د دي دپاره چه اړمونو لره سوري وي - او هم ئي
اړمونه په سرو زرو ونغښتل
٣٥ ٣٥ او آسماني رنګي او ارغواني رنګي او قرمزي رنګي او د نرو ريښلو
٣٦ کتانو پرده ئي جوړه کړه او په هغي ئي د کاريګرئ کروبياني جوړي کړي ٣٦ او
د هغي دپاره ئي څلور ستني د شتيم له لرګي نه جوړي کړي او هغه ئي په
سرو زرو باندِ ونغښتي - او د هغو کنډي ئي له سرو زرو نه جوړي کړي - او
٣٧ سپين زر ئي ويلي کړل څلور د چوړ موړي ئي ترِ جوړ کړل ٣٧ او د مسکن د
دروازي پرده ئي له اسماني رنګ او ارغواني رنګ او قرمزي رنګ او نرِي ريښلي
٣٨ کتان کښيده کړي نه جوړه کړله ٣٨ او پنځه ستني د هغي سره د کنډو -
او د ستنو سرونَ او د هغو پيوندونه ئي په سرو زرو ونغښته - او
د هغو پنځه د چوړ موړي له زيړو نه وُو *

## اوه ديرشم باب

١ ١ او بضليئيل يو صندوق د شتيم له لرګي نه جوړ کړ دوه نيم لاس اوږدوالي
٢ او يو نيم لاس پلنوالي او يو نيم لاس اوچتوالي د هغه وه ٢ او هغه ئي په خالصو
زرو د ننه او بهر ونغښت - او له هغه نه چاپيره ئي د سرو زرو کنګره جوړه
٣ کړه ٣ او څلور کړئ ئي د هغه د څلورو کونټو دپاره دوه کړئ ئي د هغه يو
٤ طرف ته او دوه کړئ ئي د هغه بل طرف ته ويلي کړي ٤ او بازوکان ئي د شتيم
٥ له لرګي نه جوړ کړل او هغه ئي په سرو زرو ونغښتل ٥ او بازوکان ئي په کړوکښ
٦ د صندوق دوارو طرفونو ته د پورته کولو د صندوق دپاره واچول ٦ او کفاره ګاه ئي
له خالصو سرو زرو نه جوړه کړه اوږدوالي د هغه دوه نيم لاس او پلنوالي ئي
٧ يو نيم لاس ٧ او دوه کروبياني ئي له سرو زرو نه جوړي کړي له ټکولي شوي

۸ کار نه ئې جوړې کړې دَ کفاره‌گاه په دواړو سرونو باندِ ۸ يوه کروبي په يو
طرف بله کروبي په بل طرف هم له هغې کفاره‌گاه نه ئې هغه دواړه کروبيانې
۹ دَ هغې په دواړو طرفونو جوړې کړې ۹ او کروبيانو وزرونه خواره کړې وُو له
پورته نه په خپلو وزرونو سره په کفاره‌گاه باندِ سورې کونکي وې مخونَ ئې
مخامخ وُو او دَ کروبيانو مخونَ دَ کفاره‌گاه طرف ته وُو

۱۰ ۱۰ او ميز ئې دَ شَتيم له لرګي نه جوړ کړ اوږدوالې دَ هغه دوه لاسَ
۱۱ او پلنوالي ئې يو لاس او اوچتوالي دَ هغه يو نيم لاس ۱۱ او هغه ئې په خالصو
۱۲ سرو زرو ونغښت- او له هغه نه ئې چاپيره دَ سرو زرو کنګره جوړه کړه ۱۲ او
په هغې دَپاسَ ئې يو سپق اوچته يوه موړېږه يوه خوا بله خوا جوړه کړه او په
۱۳ هغه موړېږه دَپاسَ ئې چاپيره دَ سرو زرو يوه کنګره جوړه کړه ۱۳ او هغه دَ
هغه دَپاره دَ سرو زرو څلور کړيئِ وِيلي کړې او هغه ئې دَ هغه دَ څلورو
۱۴ پښو په څلورو کونجونو کښ څلور کړيئِ ولګولي ۱۴ موړېږې څخه ئې کړيئِ وې ځايونه
۱۵ دَ بازوګانو دَ ميز دَپورته کولو دَپارَ ۱۵ او بازوګان ئې دَ شَتيم له لرګي نه جوړ کړل او
۱۶ هغه ئې په سرو زرو ونغښتل دَ ميز دَ پورته کولو دَپارَ ۱۶ او ټول لوښې چه په
ميز باندِ وُو دَ هغه کټوئِ او دَ هغه څمچيِ او دَ هغه رکابيِ او دَ هغه لوې
کندولُونَ دَ اوبو اچولو دَپارَ ئې له خالصو سرو نه جوړ کړل

۱۷ ۱۷ او ډيوټ ئې له خالصو سرو زرو نه جوړ کړ ډيوټ ئې سره دَ بېخه دَ
هغه او ډنډيئِ دَ هغه دَ تکولې کار نه دَ هغه کټورې دَ هغه غوټيئِ او
۱۸ دَ هغه ګلونَ هم له هغه نه وُو ۱۸ او شپږ ښاخُونه دَ هغه له دواړو
طرفُونو نه وتلي وُو درې ښاخونه دَ ډيوټ له يو طرفَ دَ هغه او درې
۱۹ ښاخُونه دَ ډيوټ له بلَ طرفَ دَ هغه ۱۹ درې کټورې دَ بادامې ګلونو په
شان جوړ کړې شوې په يوه ښاخ کښ وُو يوه غوټيئِ او يو ګل او درې کټورې
دَ بادامې ګلونو په شان جوړ کړې شوې په بل ښاخ کښ- يوه غوټيئِ او يو
۲۰ ګل- او هم دغه‌سې دَ شپږو وارو ښاخُونو دَپارَ چه له ډيوټ نه وتلي وُو ۲۰ او
په ډيوټ کښ څلور کټورې دَ بادامې ګلونو په شان ئې جوړ کړل غوټيئِ دَ هغوې

۲۱ او کلونَ ئي ۲۱ او یَوه غوتیٔ دَ دوارو بناخو دَ لاندِ له هغه نه او یَوه غوتیٔ
دَ دوارو بناخو دَ لاندِ له هغه نه وه او یَوه غوتیٔ دَ دوارو بناخو لاندِ له
۲۲ هغه نه وه له هغو شپږو بناخو دَپارَ چه له هغه نه وتلي وُو ۲۲ غوتیٔ دَ
هغه او بناخُونه دَ هغه هم له هغه نه وُو او دا ټول له تکولیو سرو زرو نه
۲۳ وُو ۲۳ او دَ هغه دَپارَ ئي اوه ډِیوي جوړي کړي او نکلګیرونَ دَ هغه او لوښي
۲۴ دَ هغه ئي له خالصو سرو زرو نه جوړ کړل ۲۴ او هغه او دَ هغه ټول
لوښي ئي له یو قنطار سرو زرو نه جوړ کړل

۲۵ ۲۵ او دَ بخُور قربانګاه ئي دَ شَتِیم له لرګي نه جوړ کړه اوږدوالي دَ
هغي یَو لاس او پلنوالي ئي یَو لاس څلور کوټیزي او اوچتوالي دَ هغي
۲۶ دوه لاسَ دَ هغه ښکرونه هم له هغه نه وُو ۲۶ او هغه ئي په خالصو
سرو زرو ونغښتل دَ هغه سر او دَ هغه دَډي او دَ هغه ښکرونَ او دَ
۲۷ هغه دَپارَ ئي چاپیره دَ سرو زرو کنګره جوړه کړه ۲۷ نه دوه کړئِ دَ سرو زرو
دَ کنګري دَ لاندِ دَ هغي په دوارو ډډو باندِ چه دَ هغي په دوارو طرفونو باندِ
وِي جوړي کړي دَپارَ دَدِ چه هغه ځایونه شِي دَ لرګو دَپارَ چه په هغي
۲۸ پورته کولي شِي ۲۸ او بازوګان ئي دَ شَتِیم له لرګي نه جوړ کړل او هغه ئي
۲۹ په سرو زرو کښ ونغښتل ۲۹ او تیل پاک دَ مښلو او دَ خوشبویو خالص
بخُور دَ عطاریانو دَ ترکیب په شان جوړ کړل

# اته دیرشم باب

۱ ۱ او قربانګاه ئي دَ سوزولو دَ قربانیٔ دَپارَ دَ شَتِیم له لرګي نه جوړ کړه - پنځه
لاسَ دَ هغه اوږدوالي او پنځه لاسَ دَ هغه پلنوالي څلور کوټیزي - او
۲ دري لاسَ دَ هغه اوچتوالي ۲ او دَ هغه ښکرونه ئي دَ هغه په څلورو وارو
کونجونو باندِ جوړ کړل دا ښکرونه هم دَ هغه له تنَ وُو - او هغه ئي په زیړو
۳ کښ ونغښتل ۳ او ټول لوښي دَ قربانګاه دیګونَ او بیلونَ او کندولونَ او
۴ سِیخُونَ او نغري ټول لوښي دَ هغه ئي له زیړو نه جوړ کړل ۴ او یَوه جالیٔ
ئي دَ جال په شان ته له زیړو نه دَ قربانګاه دَپارَ دَ کناري نه کښته تر نیمي

٥ پوري جوړه کړله ۵ او څلور کړئِ ئي دَ زيړو دَ جالي په څلورو کونټونو باندِ وِلي
٦ کړي دَ دي دَپارَ چه دَ بازوکانو ځاي وِي ٦ او بازوکان ئي دَ شِتيم له لرګِي نه
٧ جوړ کړل او هغه ئي په زيړو کښ ونغښتل ٧ او بازوکان ئي دَ قربانګاه دَ دوارو
طرفونو په کړو کښ واچول دَ دي دَپارَ چه هغه په هغو پورته کولي شِي - او
هغه ئي له تختو نه دَډُ جوړ کړل
٨ ٨ او حوض ئي له زيړو او دَ هغه کرسيُ ئي له زيړو نه دَ هغو عابدو
ښځو له آئينو نه چه دَ جماعت دَ مسکن په دروازه به ئي عبادت کاوه
جوړي کړي
٩ ٩ او غولي ئي جوړ کړ دَ هغه دَپارَ ئي سُهَيل طرف ته ښي لاس ته
١٠ پړدي دَ غولي له نرِي ريښلِي کتان نه جوړي کړي له سلو ګزونَ ١٠ دَ هغه
ستني شل او دَ هغو دَ چوړ موړي شل له زيړو نه کُنړي دَ ستنو او
١١ بندونَ دَ هغو له سپينو زرو ١١ او قطب طرف دَپارَ سل لاسَ او ستني
دَ هغو شل او دَ هغو دَ چوړ موړي له زيړو نه شل او کُنړي دَ ستنو
١٢ او بندونَ دَ هغو له سپينو زرو ١٢ او دَ نمر پريواته طرف ته پړدي وي
دَ پنځوسو لاسو دَ هغو ستني لَس او دَ هغو دَ چوړ موړي لَس دَ ستنو
١٣ کُنړي او بندونَ ئي دَ سپينو زرو ١٣ او نمرخاته طرف ته پنځوس لاسَ
١٤ ١٤ پنځلس لاسَ پړدي دَ يو طرف دَ هغو ستني دري او دَ هغو دَ چوړ موړي
١٥ دري ١٥ او دغه شان دَ بل طرف دَپارَ دَ غولي دَ دروازي يوه خوا بله خوا
١٦ پړدي پنځلس لاسَ ستني ئي دري او دَ چوړ موړي ئي دري وُو ١٦ او له غولي
١٧ نه چاپيره ټولي پړدي له نرِي ريښلي کتانَ وِي ١٧ او دَ چوړ موړي دَ ستنو دَپارَ له زيړو نه
وُو کُنړي دَ ستنو او دَ هغو بندونَ له سپينو زرو - او دَ هغو سرونَ په سپينو
١٨ زرو کښ نغښتي وُو او دَ غولي ټولو ستنو دَ سپينو زرو بندونَ لرل ١٨ او دَ
غولي دَ دروازي پړده ئي له آسماني رنګ او ارغواني رنګ او قرمزي رنګ او له
نرِي ريښلي کتانه له کاره دَ کښيدي کونکِي نه وَه او اوږدوالي ئي شل لاسَ او
١٩ اوچتوالي ئي په پلنوالي کښ پنځه لاسَ موافق دَ پړدو دَ غولي وه ١٩ او دَ هغي

ستني څلور او دَ هغو دَ ځوړ موړيِ څلور له زيړو نه وُو او کُنډي دَ هغو
له سپينو زرو نه او دَ هغو سروڼ نغښتي شوي او دَ هغو بندوڼ له
۲۰ سپينو زرو نه ۲۰ او ټول ميخوڼ دَ مسکن او دَ غوليِ چاپيره دَ زيړو وُو
۲۱ ۲۱ او حساب دَ مسکن يعني دَ عهدنامي دَ مسکن چه موافق دَ موسیٰ
له حکمَ سره په خدمت دَ لاويانو په لاس دَ اِيثامار بن هارون کوهن شوي
۲۲ وه دا دِي ۲۲ او بَصَلئيل بن اوري بن حُور دَ يهُودا له فرقي نه هغه ټول
۲۳ چه خداوند موسیٰ ته ويلي وُو جوړي کړل ۲۳ او له هغه سره اَهُولياب بن
اَخِيسَاماک دَ دان له فرِيق نه نَقّاش او کارِيګر وه او دَ اسماني رنګ او ارغواني
رنګ او قرمزي رنګ او دَ نرِي کتان کښيده کر وه
۲۴ ۲۴ ټول سره زر چه دَ کار دَپارَ دَ مَقدِس په ټول کار کښ يعني
سره زر دَ پيشکشيِ نهٔويشت قِنطارَ وُو اوه سوَ ديرش مِثقالَ په شان
۲۵ دَ مَقدِس دَ مِثقالُونو وُو ۲۵ او سپين زر دَ شمارلي شويو دَ جماعت يوَ
سل قِنطارَ او زر او اوه سوَ او پنځه اويا مِثقالَ وُو موافق دَ مِثقالونو دَ
۲۶ مَقدِس ۲۶ ته هر سرِي پسي يوَ بيعَ يعني نيم مِثقال دَ مَقدِس په مِثقال سره وه
هر سرِي له‌چه پوروتي دِي هغوي له چه شمارلي شوي دِي له شلو کالو نه په
۲۷ پورته چه ټول شپږ لکهَ دري زرَ پنځه نيم سوَ خلق وه ۲۷ او يوَ سل قِنطارَ
وُو دَ سپينو زرو نه دَپارَ دَ وِيلي کولو دَ ځوړ دَ موړو دَ مَقدِس او دَ ځوړ
موړو دَ پردي-يوَ سل دَ ځوړ موړيِ دَ يوَ سل قِنطارو دَپارَ يوَ قِنطار دَ
۲۸ ځوړ دَ موړيِ دَپارَ ۲۸ او له يوَ زر اوو سَوو پنځه اوياؤ مِثقالو دَ ستنو
۲۹ کُنډي ئي جوړي کړي-او دَ هغو سروڼَ او بندوڼَ ئي ونغښتل ۲۹ او زيړ دَ
۳۰ خوزولو دَ قربانيِ اَويا قِنطارَ دَوه زرَ څلور سوَ مِثقالَ وُو ۳۰ او له هغو نه
ئي جوړ کړل دَ ځوړ موړيِ دَ جماعت دَ مسکن دَ دروازي او مذبح دَ زيړو او
۳۱ دَ هغه جاليِ دَ زيړو او ټول لوښي دَ مذبح ۳۱ او دَ ځوړ موړيِ دَ غوليِ چارچاپيره
او دَ ځوړ موړيِ دَ دروازي دَ غوليِ او ټول ميخوڼَ دَ مسکن او دَ غوليِ ټول
ميخوڼَ چه چاپيره وُو ❖

# نه دیرشم باب

آو نوئ جامي دَ مُقدِس دَ عبادت کولو دَپاره ئي له آسماني رنګو او ارغواني رنګو ۱
او قرمزي رنګو نه جوړي کړي - او پاکي جامي ئي دَ هارون دَپارَ لکه چه يَهوَه
موسیٰ ته ويلي وُو جوړي کړي
۲ او اَفود ئي له سرو زرو او له آسماني رنګ او ارغواني رنګ او قرمزي رنګ ۲
او له نري ريشلي کتان نه جوړ کړ ۳ او سره زر ئي وټکول او تارون ئي تر جوړ ۳
کړل دَ دي دَپارَ چه هغه په آسماني رنګ او ارغواني رنګ او قرمزي رنګ او
نري ريشلي کتان کښ اوودي کار دَ هوښيار کښيده کوونکي ۴ او دَ هغه دَپارَ ۴
ئي دوه اوږي يو ځاي کړي شوي دَ هغه دوارو طرفونو ته پيوستي جوړي کړي
۵ او دَ هغه کښيده کمربند چه په هغه باندِ وه دَ هغه دَ ترلو دَپارَ له ۵
هغه نه وه موافق دَ کار دَ هغه دَ سرو زرو له آسماني رنګ او ارغواني رنګ
او قرمزي رنګ او نري ريشلي کتان نه لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه
۶ او دوه جواهر دَ جَزع ئي جوړ کړل او هغه ئي دَ سرو زرو په کورونو ۶
کښ جړاؤ کړل او په هغو باندِ ئي دَ کوټي دَ مهرکنديئ په شان موافق دَ
نومونو دَ بني اسرائيلو وکنودل ۷ او هغه ئي دَ اَفود په دوارو اوږو باندِ کښيښودل ۷
او هغه دواړه کاڼړي دَ بني اسرائيلو دَ يادَولو دَپارَ وُو لکه چه يَهوَه موسیٰ
ته حکم کړي وه
۸ او سينه بند ئي کار دَ هوښيار کاريګر موافق دَ کار دَ اَفود له سرو ۸
زرو نه او له آسماني رنګ او ارغواني رنګ او قرمزي رنګ او له نري ريشلي
کتان نه جوړ کړ ۹ او هغه ئي څلور کوټيزي جوړ کړ سينه بند ئي دو بغرګه جوړ ۹
کړ اوږدوالي ئي يو لويشت او پلنوالي ئي يو لويشت دو بغرګ وُو ۱۰ او په هغه
کښ ئي څلور کرښي دَ جواهرو جړاؤ کړي - په اوله کرښه کښ عَقِيق
زيړ ياقُوت او سره عَقِيق وُو دا اوله کرښه وه ۱۱ او په دويمه کرښه کښ زُمُرّد ۱۱
او صَفِير او اَلماس ۱۲ په دريمه کرښه کښ حَجَر يماني او کاهُربا او جُمُست ۱۲
۱۳ په څلورمه کرښه کښ اَزرَق او جَزع او يَشب - او دا دَ سرو زرو په کورونو ۱۳

۱۴ کښې جړاو کړې شوې وُو ۱۴ او جواهر موافق دَ نومونو دَ بني اسرائيلو دولس وُو-
موافق دَ نومونو دَ هغو دَ کوتي دَ مهر په شان هر يَو په شان دَ خپل نوم دَ
۱۵ دولسو فرقو دَپارَ ۱۵ او په سينه بند باندِ ئي دوه پلوانښي دَ پړي په شان غنبتي
۱۶ شوي له خالصو سرو زرو نه ئي جوړې کړلي ۱۶ او دوه کورونَ ئي له سرو
زرو نه او دوه کړيِ ئي دَ سرو زرو جوړي کړي- او کړيِ ئي دَ سينه بند دوارو
۱۷ طرفونو ته واچولي ۱۷ او نغښتلي شوي دَ سرو زرو پلوانښي ئي په هغو دوارو کړو
۱۸ کښې چه دَ سينه بند دوارو طرفونو ته وي اويزاندِ کړلي ۱۸ او دَ دوارو طرفونو دَ
نغښتليو شويو پلوانښو دَ اَفُود په اوږو باندِ ئي مخ کښې طرف ته ولګولي په
۱۹ دوو غوټو باندِ ئي کېښودلي ۱۹ او دوه کړيِ ئي له سرو زرو نه جوړي کړي او
هغه ئي په دوارو طرفونو دَ سينه بند کېښودي په هغه کښې چه دننه دَ اَفُود
۲۰ پلو طرف ته وه ۲۰ او دوه کړيِ ئي له سرو زرو نه جوړي کړي او هغه ئي په
دوارو اوږو باندِ لاندِ له افود نه دَ هغه مخي طرف ته دَ هغه دَ يَوځاي کېدو.
۲۱ ځاي څخه دَ اَفُود دَ زري کمربند دَپاسَ ولګولي ۲۱ او په کړو سره ئي سينه بند يَو
ځاي کړ دَ اَفُود په کړو کښې ئي اسماني رنګي تار واچوه اويزاند ئي کړ دَدي دَپارَ
چه دَ اَفُود دَ کښيده کمربند دَپاسَ شِي او سينه بند له اَفُود نه و نه خوځي لکه چه
۲۲ خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه ۲۲ او دَ اَفُود دَپارَ ئي فرغل له اودلي کار نه جوړ کړ-
۲۳ او هغه ټول له آسماني رنګي نه وه ۲۳ او دَ هغه فرغل ګريوان دَ هغه په مينځ
کښې دَ زغري دَ ګريوان په شان وه- او دَ هغه ګريوان په کنارو دَ پاسَ بخيِ
۲۴ وي چه و نه شليږي ۲۴ او دَ فرغل دَ لمن په ګير کښې ئي انار له اسماني رنګ
۲۵ او ارغواني رنګ او قرمزي رنګ او له نري ريښتلي کتان نه جوړ کړي وُو ۲۵ او
جرَسُونَ ئي له خالصو سرو زرو نه جوړ کړي وُو او هغه جرَسُونَ ئي دَ انارو په
۲۶ مينځ کښې دَ فرغل دَ لمني په ګير کښې لګولي وُو ۲۶ جرَس او انار جرَس او انار
دَ فرغل په لمني ګيرچاپير دَ خدمت کولو دَپارَ لکه چه خداوند موسیٰ ته
حکم کړي وه

۲۷ ۲۷ او قميصونه ئي له نرو کتانو له اودلي کار نه دَ هارون او دَ هغه

۲۸ دَ ثامنو دَپارَ جوړ کړل ۲۹ او پګړیِ يُ له نرو کتانو نه او دَ بنایست ټوپیِ
۲۹ يُ له نرو کتانو نه او دَ کتانو پرتوګونَ له نرو ریشلو کتانو نه جوړ کړل ۲۹ او
کمربند له نرِي ریشلِي کتانَ او آسمانِي رنګ او ارغوانِي رنګ او قرمزِي رنګ کار
دَ کشیده کونکي لکه چه یَهوَه موسیٰ ته حکم کړي وه
۳۰ ۳۰ او دَ مَقدِس دَ تاج پانړه يُ له خالصو سرو زرو نه جوړه کړه او په هغي
کښ يُ دَ مهر په شان وکنوَدل **چه قدُس دَ یَهوَه دَپارَ**
۳۱ **دي** ۳۱ او په هغي باندِ يُ يَو آسمانِي رنګي تار دَ پګړیِ دَپاسَ تاړه لکه
چه خداوند موسیٰ ته ویلِي وُو
۳۲ ۳۲ هم دغه شان کار دَ مسکن دَ تنبو دَ جماعت تمام شه او بنِي اسرائیلو
ټول لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه وکړل
۳۳ ۳۳ او هغه مسکن يُ موسیٰ له راوړ تنبو او دَ هغه ټول اسباب
او دَ هغه کُنډِي او دَ هغه تختي او دَ هغه اړمُونَ او دَ هغه ستني او دَ
۳۴ هغه دَ چُوړ موړِي ۳۴ او غِلاف دَ ګډو له سرو رنګ کړو شوبو کُوړو نه او
۳۵ غِلاف دَ سګلاهوانو له څرمنو نه او غِلاف دَ پردي ۳۵ دَ عهدنامي صندوق
۳۶ او دَ هغه بازوګان او کفورَت ۳۶ میز دَ هغه ټول لوښِي او دَ نذر ډوډِيُ
۳۷ پاک ډِیوټ دَ هغه یعني ډِیوي چه په ترتیب ایښي شوي وي او
۳۸ دَ هغه ټول لوښِي او تیل دَ روښنایِيُ دَپارَ ۳۸ او مذبح زَرِین او دَ مسَح
۳۹ تیل او خوشبویَ بخور او دَ تنبو دَ دروازي پرده ۳۹ او مذبح دَ زیړو او دَ
هغه جالِيُ دَ زیړو دَ هغه بازوګان او دَ هغه ټول لوښِي حوض او دَ هغه کرسيِ
۴۰ ۴۰ او دَ غولِي پردي دَ هغو ستني او دَ هغو دَ چُوړ موړِي او دَ غولِي دَ دروازي پرده
دَ هغي رسيِ او دَ هغي میخونَ او ټول لوښِي دَ خدمت دَ مسکن او دَ جماعت دَ
۴۱ تنبو دَپارَ ۴۱ او نویِ جوړي شوي جامي دَ مَقدِس دَ عبادت دَپارَ او پاکي جامي دَ
۴۲ هارون کوهن دَپارَ او دَ هغه دَ ثامنو جامي دَ کوهنوالِي دَ خدمت دَپارَ ۴۲ لکه
۴۳ ټول چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه هم هغه سي بنِي اسرائیلو ټول کار وکړ ۴۳ او
موسیٰ ټول کار ولید- او وُ يُ لید چه هغوي تیار کړ هغه سي لکه چه خداوند حکم

کړي وه هغه سي ئې وکړ نو موسیٰ ور ته دَ خیر دعا وکړه ❊

## څلویښتم باب

۲-۱ ۱ نو خداوند موسیٰ ته خبري وکړي وئې ویل ۲ چه په اول تاریخ دَ وړومبيِ میاشتي
۳ هغه مسکن چه دَ جماعت تنبو دي ودروه ۳ او په هغه کښ دَ عهدنامي
۴ صندوق کیږده او په صندوق باندِ پرده واچوه ۴ او میز په کښ ننباسه او په
هغه باندِ ټول اسباب په ترتیب کیږده - او ډیوټ په کښ ننباسه او ډیوي دَ
۵ هغه بلې کړه ۵ او دَ سرو زرو مذبح دَ بخور دَ عهدنامي دَ صندوق په مخ کښ
۶ کیږده او پرده دَ مسکن په دروازي باندِ واچوه ۶ او مذبح دَ سوزولو دَ قربانيِ دَ
۷ وړاندِ دَ مسکن په دروازه یعني دَ جماعت دَ تنبو کیږده ۷ او حوض دَ جماعت دَ
۸ تنبو او دَ مذبح په مینځ کښ کیږده او په هغه کښ اوبه واچوه ۸ او دیوالونَ
۹ چاپیره ودروه او دَ غوليِ په دروازو باندِ پرده واچوه ۹ او دَ مسلو تیل واخله
او په هغو باندِ مسکن او هغَه ټول څیزونَ چه په مسکن کښ دِي مسح کړه
۱۰ او هغه پاک کړه او ټول اسباب دَ هغه چه مُقَدَس شِي ۱۰ او مذبح
دَ سوزولو دَ قربانيِ هم او ټول لوښي دَ هغه مسح کړه او مذبح پاک کړه او
۱۱ مذبح به قُدسِ اَقدَس شِي ۱۱ او حوض او دَ هغه کرسيِ مسح کړه او هغه
۱۲ پاک کړه ۱۲ او هارون او دَ هغه ځامن دَ جماعت دَ مسکن دروازي له راوله
۱۳ او هغوي له په هغو اوبو غُسل ورکړه ۱۳ او هارون ته پاکه جامه واغونده
او هغه مسح کړه او پاکي کړه دَدي دَپارَ چه په کوهن والي کښ څما خدمت
۱۴ ۱۵ وکړي ۱۴ او دَ هغه ځامن راوله او هغوته قمیصونه واغونده ۱۵ او هغوي
مسح کړه لکه چه دَ هغو پلار دِ مسح کړي دي دَدي دَپارَ چه هغوي په
کوهن والي کښ څما خدمت وکړي او دا مسح کول دَ هغوي دَ همیشه کوهن والي
۱۶ دَپارَ به شِي دَ هغوي په پیړو کښ ۱۶ هم دغه شان موسیٰ وکړل څکه چه
خداوند ورته ویلي وُو وئې کړل
۱۷ ۱۷ او داسي وشول په اولي میاشتي دَ دویم کال په وړومبيِ ورځي دَ
۱۸ میاشتي مسکن ودرولي شه ۱۸ نو موسیٰ مسکن ودراوه او دَ هغه دَ چوړ

موږې ئې کښيښول او دَ هغه تختې ئې ودرولې او په هغو کښ ئې اړمونَ
ولګول او دَ هغه ستنې ئې ودرولې ۱۹ او خيمه ئې په مسکن دَ پاسَ و ۱۹
غوړاوله او دَ تنبو دَپاسَ ئې غِلاف واچوه لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم
کړې وه ۲۰ او عهدنامه ئې واخستله او په صندوق کښ ئې کښيښودله- ۲۰
او په صندوق کښ ئې بازوګان واچول او په صندوق دَپاسَ ئې کَفورَت
کښيښود ۲۱ نو بيا هغه صندوق ئې مسکن ته ننويست او پړده ئې ۲۱
اويزانده کړله او دَ عهدنامې صندوق ئې پټ کړ لکه چه خداوند موسیٰ
ته حکم کړې وه ۲۲ او ميز ئې دَ جماعت په تنبو کښ قطب طرف ته دَ ۲۲
مسکن له پړدې نه باهر کښيښود ۲۳ او په هغه دَپاسَ ئې دَ خداوند دَ ۲۳
وړاندِ لکه چه خداوند موسیٰ ته ويلي وُو په ترتيب ډوډۍ کښيښودې-
۲۴ او ډِيوټ ئې دَ جماعت په تنبو کښ دَ ميز په مخ کښ سُهَيل طرف ته ۲۴
دَ مسکن کښيښود ۲۵ او دَ خداوند دَ وړاندِ ئې ډِيوې بلې کړې لکه چه خداوند ۲۵
موسیٰ ته حکم کړې وه ۲۶ او زرين مذبح ئې دَ جماعت په تنبو کښ دَ پړدې ۲۶
په مخ کښ کښيښوده ۲۷ او په هغه دَپاسَ ئې بخور لکه چه خداوند موسیٰ
ته حکم کړې وه وسوزول ۲۸ او دَ مسکن په دروازه ئې پړده آويزانده ۲۸
کړله ۲۹ او دَ سوزولو دَ قربانۍ مذبح ئې په مخ کښ دَ دروازې دَ مسکن ۲۹
دَ تنبو دَ جماعت کښيښوده او په هغه ئې دَ سوزولو قربانۍ او پيشکشۍ
لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړې وه قربانۍ کړې ۳۰ او حوض ئې دَ جماعت ۳۰
دَ تنبو او دَ قربانګاه تر مينځ کښيښود او په هغه کښ ئې دَ لمبلو دَپارَ
اوبه واچولې ۳۱ او په هغې باندِ موسیٰ او هارون او دَ هغه ځامنو ۳۱
لاس پښې وويِنځل ۳۲ چه هغوي دَ جماعت تنبو ته راغلل او مذبح ته ۳۲
نزدې شول نو و ئې وِينځل لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړې وه ۳۳ نو ۳۳
غولې ئې چاپېره له مسکن نه او له مذبح نه جوړ کړ او پړده ئې په
دروازې دَ غولې واچوله او موسیٰ دغه سې ټول کار پوره کړ
۳۴ نو وَريځ دَ جماعت په تنبو سورې شوه او دَ خداوند جلال مسکن ۳۴

۳۵ ډک کړ ۳۵ او موسیٰ دَ جماعت په تنبو کښ نه شه ننوتی ځکه چه ورېځ پر
۳۶ ولاړه وه او دَ خداوند جلال مسکن ډک کړي وه ۳۶ چه ورېځ به له مسکن
نه پورته شوله نو هله به بني اسرائیلو په خپلو ټولو سفرونو کښ کوچ
۳۷ کاوه ۳۷ لیکن هر کله چه به ورېځ نه پورته کیدله نو دَ هغي دَ پورته کیدو
۳۸ تر ورځي پوري به يې کوچ نه کاوه ۳۸ ځکه چه دَ خداوند ورېځ به دَ ورځي
دَ مسکن دَپاسَ وه- او دَ شپي به په هغي کښ اور به په نظر دَ ټولو
بني اسرائیلو کښ دَ دوي په ټولو سفرونو کښ ښکاریده +

# احبار

## یعني دریم کتاب دَ حضرت موسیٰ

## اوّل باب

۱ او خداوند موسیٰ وباله او دَ جماعت له خیمي نه ئي ور سره خبري ۱
وکړي و ئي ویل چه ۲ بني اسرائیلو سره خبري وکړه او ورته ووایه چه که څوک ۲
له تاسو نه دَ خداوند دَپارَ قرباني کوئ نو تاسو به له څارویو نه له غوایانو نه او
له بزو کډو نه قرباني وکړئ

۳ که دَ هغه قرباني دَ سوزولو له غوایانو نه وي نو نر بي عیبَ دِ قرباني ۳
کړي نو هغه به ئي دَ جماعت دَ خیمي دروازي څخه قرباني کړي چه هغه دَ
خداوند دَ وړاندِ منظور شي ۴ او هغه به خپل لاس دَ هغي سوزولو دَ قربانئ ۴
په سر باندِ کیږدي نو قبوله به کړي شي دَ هغه دَپارَ به کفاره شي ۵ او ۵
دبي دِ هغه څخوندر دَ خداوند دَ وړاند حلال کړي او بني هارون کوهینان
دِ هغه وینه راوړي او هغه دِ کیرچاپیره له هغه مذبح نه چنړکاو کړي
چه هغه دَ جماعت دَ خیمي دروازي څخه دي ۶ او دَ سوزولو له قربانئ نه ۶
دِ څرمن وباسي او اندامونه دِ ئي پري کړي ۷ او بني هارون کوهین دِ په مذبح ۷
باندِ اور کیږدي او په هغه اور دِ لرګي په ترتیب برابر کړي ۸ او کوهینان ۸
بني هارون په هغه اندامونه دَ سر او دَ وازدي سره په هغه لرګو باندِ په
ترتیب کیږدي هغه چه دَ مذبح په اور باندِ دي ۹ او دَ هغي لړمون او پښي به ۹
په اوبو وویڅي او کوهین به هغه ټول په مذبح باندِ وسیزي چه دَ سوزولو
قرباني دَ اور قرباني دَ خوشبوئي دَ خداوند دَپارَ وي

۱۰ او که هغه قرباني له کنډکَ وي نو له کډو نه یا د بزو نه دَ سوزولو ۱۰
دَ قربانئ دَپارَ نو هغه به نر بي عیبَ قرباني کړي ۱۱ او دَ مذبح په قطب طرف ۱۱
دِ ئي دَ خداوند دَ وړاندِ حلال کړي او وینې دَ هغي دِ کوهینان چه بني هارون
دي کیرچاپیره په مذبح چنړکاو کړي ۱۲ او دَ سر او دَ وازدو سره دِ ئي اندامونه ۱۲

پرې کړي او کوهين به يې په ترتيب سره په لرګو باندِ چه په اور باندِ چه
۱۳ په مذبح باندِ دي کيږدي ۱۳ او دَ هغې لړمون او پښي به په اوبو وينځي او
کوهين به ټول پيش کړي او په مذبح به يې وسيزي هغه دَ سوزولو قرباني
دَ اور قرباني دَ خوشبوئي دَ خداوند دَپارَ ده

۱۴ ۱۴ اوکه دَ هغه قرباني دَ خداوند دَپارَ د سوزولو قرباني له مرغانو
نه وِي نو هغه به له قمرو يا له بچو له کونترو نه به خپله قرباني وکړي
۱۵ ۱۵ او کوهين به يې مذبح ته راوړي او دَ هغې سر به تاو کړي او په مذبح
۱۶ به يې وسيزي او دَ هغې وينه به دَ مذبح په ډډه بهور کړي شي ۱۶ او دَ
هغې ججوره به دَ دانو سره وباسي او دَ مذبح په نمرخاته طرف به يې دَ
۱۷ ايرو په ځاي وغورزوي ۱۷ او هغه به دَ هغې دواړه ځانګونه وشلوي خو په
مينځ به يې نه جدا کړي او کوهين به يې په مذبح باندِ دَ هغو لرګو دَپاسَ چه
په لور باندِ دي وسيزي هغه دَ سوزولو قرباني دَ اور قرباني دَ خوشبوئي
دَ خداوند دَپارَ ده ✢

# دويم باب

۱ ۱ او څوک چه دَ هديي قرباني دَ خداوند دَپارَ کوي نو دَ هغه قرباني به له
۲ ميدي نه وِي او په هغې به تيل تويُ کړي او لوبان به پرِ کيږدي ۲ او هغه
به بني هارون کوهينانو له راوړي او هغه به له هغې ميدي نه او له
هغه تيلو نه دواړو لوبانو سره يو موټي واخلي او هغه به کوهين دَ هغې
دَ يادګارئ دَپارَ په مذبح باندِ وسيزي دَ اور قرباني دَ خوشبوئي دَ خداوند دَپارَ
۳ وِي ۳ او هغه چه دَ هديي له قربانئ نه پاتي شي هغه به دَ هارون
او دَ هغه دَ زامنو شي دغه دَ خداوند دَ اور له قربانو نه دَ پاکو پاکه ده

۴ ۴ او که چه ته دَ هديي قرباني دَ تنور پخ کړي شوي کوي نو دَ
ميدي فطير ګکوړي په تيلو کښ دِ ګډ شوي وِي يا فطيري چپاتي دِ په
۵ تيلو غوړي کړي وِي ۵ او که ستا دَ هديي قرباني دَ تبئ وِي نو فطيره
۶ ميده په تيلو کښ دِ ګډ کړي شوي وِي ۶ او هغه ټوکړي ټوکړي ماته کړه

او تیل پرِ توي کړه دغه دَ هدیې قرباني ده ۷ او که ستا دَ هدیې قرباني دَ کړهي ۷
پخ کړي شوي وِي نو هغه دِ دَ میدې دِ دَ تیلو سره تیاره کړي شي ۸ نو ۸
هغه دَ هدیې قرباني چه له دوي نه جوړه شوې ده دَ خداوند دَپارَ دِ راوړي
او چه کوهین ته وړاندِ کړي شي نو هغه به يې مذبح ته راوړي ۹ او ۹
کوهین دِ دَ هغه هدیې له قربانيِ نه څه دَ یادګاريِ دَپارَ واخلي او په مذبح
دِ يې وسیزي دَ اور قرباني دَ خوشبویيِ دَ خداوند دَپارَ وِي ۱۰ او هغه چه ۱۰
دَ هدیې له قرباني نه څه پاتي شي هغه به دَ هارون او دَ هغه دَ زامنو
شي چه دَ خداوند دَ اور قربانيِ دَ پاکو پاکه ده ۱۱ هیڅ دَ هدیې قرباني چه تاسو ۱۱
دَ خداوند دَپارَ راوړيِ هغه دِ هیڅري خمبیره نه کړي شي ځکه چه تاسو به
هیڅ خمبیره او هیڅ شهد به دَ اور په قربانيِ کښ دَ خداوند دَپارَ و نه سیزلي
شي ۱۲ دَ وړمبيِ میوي قرباني تاسو دَ خداوند دَپارَ نژدې راوړيِ لیکن هغه ۱۲
دِ دَ خوشبويِ دَپارَ په مذبح باندِ و نه سیزلي شي ۱۳ او ته دَ هدیې هره ۱۳
یوه قرباني په مالګه سره مالګینه کړه او ته له خپلي دَ هدیې له قربانيِ
نه دَ خپل الله دَ عهد مالګه مه کموه بلکه وارو خپلو قربانو ته مالګه واچوه
۱۴ او که ته له وړمبو میوو نه دَ خداوند دَپارَ دَ هدیې قرباني راوړي ۱۴
نو ته به دَ خپلو وړمبو میوو نه دَ هدیې قرباني دَ وریتي کړي شوي غلي نه
ستوان له تازوګي نه راوړي ۱۵ او په هغي تیل واچوه او لوبان پرِ دَپاسَ ۱۵
کیږده دا هدیه ده ۱۶ او کوهین به دَ هغي یادګاري څه له هغه ستو کړي ۱۶
شوي غلي نه او څه له هغه تیلو نه دَ وارو لوبانو سره وسیزي دا دَ
خداوند دَپارَ دَ اور قرباني ده ✱

## دریم باب

۱ او که دَ هغه قرباني دَ سلامتيِ ذبیحه وِي نو که له غوایانو نه وِي نر یا له ۱
ښځي نه وِي نو بې‌عیبَ دِ دَ خداوند دَ وړاندِ راولي ۲ او هغه دِ خپل لاس دَ خپلي ۲
قربانيِ په سر باندِ کیږدي او دَ جماعت دَ خیمي په دروازه باندِ دِ يې حلاله کړي
او بني هارون چه کوهینان دِي دَ هغي وینې دِ په مذبح باندِ کیرچاپیر

۳ چنړکاو کړي ۳ او دَ هغي سلامتيِ له ذبيحي نه دِ دَ اور قربانيِ دَ يَهْوَهْ دَپارَ
راوړي يعني هغه وازده چه لړمون پټوي او ټوله وازده چه په لړمون
۴ وِي ۴ او دواړه پښتورکي او هغه وازده چه په هغو باندِ دَه چه په تشو
۵ باندِ دَه او هغه جلئ چه په اِينه او په پښتورکو باندِ دَه يو دِ سِي ۵ او
بني‌هارون به دغه په مذبح باندِ دَ سوزولو دَ قربانئِ دَ پاسَ په لرګو باندِ
چه دَ اور دَپاسَ دِي وسيزي دغه دَاور قرباني ده دُ خوشبوئي دَ يَهْوَهْ
دَپارَ وِي

۶ ۶ او که دَ هغه قربانيِ دَ سلامتيِ ذبيحه دَ يَهْوَهْ دَپارَ له کنډک نه
۷ وِي نو نر يا ښځه دِ بي‌عيب راولي ۷ او که هغه دَ خپلي قربانئِ دَپارَ ګډوري
۸ راولي نو هغه دِ دَ يَهْوَهْ دَ وړاندِ راولي ۸ او خپل لاس دِ دَ خپلي قربانئِ په
سر کيږدي او هغه دِ دَ جماعت دَ خيمي دَ وړاندِ حلاله کړي او بني‌هارون دِ
۹ دَ هغي وينه په مذبح باندِ ګيرچاپير چنړکاو کړي ۹ او دَ هغي سلامتيِ له
ذبيحي نه به دَ اور قربانيِ دَ يَهْوَهْ دَپارَ راوړي يعني دَ هغي وازده او ټول
لم دِ له بيخَ جدا کړي او هغه وازده چه لړمون پټوي او ټوله وازده چه په
۱۰ لړمون وِي ۱۰ او دواړه پښتورکي او هغه وازده چه په هغو باندِ ده چه په
تشو باندِ دَه او هغه جلئ چه په اِينه او په پښتورکو باندِ ده يو دِ سِي
۱۱ ۱۱ کوهين به دغه په مذبح باندِ وسيزي چه داخوراک دَ اور قرباني ده دَ
يهوه دَپارَ

۱۲ ۱۲ او که دغه قرباني چيلي وِي نو هغه دِ دَ يَهْوَهْ دَ وړاندِ راولي -
۱۳ ۱۳ او هغه به خپل لاس دَ هغي په سر باندِ کيږدي او هغه به دَ جماعت دَ
خيمي دَ وړاندِ حلال کړي او بني‌هارون به دَ هغي وينه ګيرچاپير په مذبح
۱۴ باندِ چنړکاو کړي ۱۴ نو هغه به له هغي نه خپله قرباني دَ اور قرباني دَ
يَهْوَهْ دَپارَ راوړي هغه وازده چه لړمون پټوي او ټوله وازده چه په لړمون
۱۵ دَه ۱۵ او دواړه پښتورکي او هغه وازده چه په هغو باندِ ده چه په تشو
باندِ ده او هغه جلئ چه په اِينه او په پښتورکو باندِ ده جدا دِ کړي -

۱۶ او کوهین به هغه په مذبح باندِ وسیزِي دا خوراک دَ اور قربانِي دَ ۱۶
خوشبویِئ دَپارَ ده واړه وازده دَ خداوند ده ۱۷ دا ستاسو ټولو پیړو ته په وارو ۱۷
مسکنونو کښ دَ همیشه دَپارَ حکم دي چه تاسو مه وازده خوريِ او
مه وینه ✣

# څلورم باب

۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئې ویل چه ۲ بنيِ‌اسرائیلو سره ۱ ۲
خبري وکړه او ورته ووایه چه که څوک په خطا سره دَ خداوند له ټولو حکمونو
نه دَ خطا یو کار وکاندِ چه هغه ئې منع کړي وه او یو له هغو نه وکاندِ
۳ که کوهن ممسوح خطا وکړي چه په قوم باندِ راولي نو هغه دَ خپلي خطا ۳
دَپارَ چه هغه خطا کړي ده یو بي‌عیب څخوندر چه دَ خطا دَ قربانِئ دَپارَ
خداوند دِ راولي ۴ نو هغه به هغه څخوندر دَ جماعت دَ خیمي دروازي ته دَ یَهوَه ۴
دَ وړاندِ راولي او دَ هغه څخوندر په سر به خپل لاس کیږدِي او هغه
څخوندر به دَ خداوند دَ وړاندِ حلال کړي ۵ او هغه ممسوح کوهین دِ دَ ۵
هغه څخوندر له ویني څه واخلي او دَ جماعت خیمي نه دِ ئې راوړي-
۶ او کوهین دِ خپله ګوته په وینو کښ ومنډِي او دَ خداوند دَ وړاندِ به ئې ۶
دَ مقدسي پردي دَ وړاندِ اووه ځلَ له هغه وینو نه چڼرکاو کړي ۷ او ۷
کوهین به څه له هغه وینو نه دَ خوشبویِئ دَ مذبح په ښکرونو باندِ چه
دَجماعت په خیمه کښ دِي دَ خداوند دَ وړاندِ ولګوِي او دَ هغه څخوندر
ټوله وینه دَ سوزولو دَ قربانِئ دَ مذبح دَ لاندِ چه دَ جماعت دَ خیمي دروازي
څخه دي وا به روِي ۸ او ټوله وازده دَ هغه خطا دَ قربانِئ له څخوندر ۸
نه جدا کاندِ هغه وازده چه لرمون پټوِي او ټوله وازده چه په لرمون
باندِ ده ۹ او دواړه پښتورګي او هغه وازده چه په هغو باندِ ده او ۹
هغه جلِئ چه په اِینه او په پښتورګو ده جدا دِ کړي ۱۰ لکه چه دَ سلامتِئ ۱۰
دَ څخوندر له ذبیحي نه جدا کولي شي او کوهین به هغه دَ سوزولودَقربانِئ
په مذبح باندِ وسیزِي ۱۱ او دَ هغه څخوندر څرمن او دَ هغه ټوله غوښه ۱۱

۱۲ او سر پښي ور سره او دَ هغه لړمون او دَ هغه غوشايان ۱۲ ټول دَ هغه
څخوندر بهر له هغه ډيري نه په پاک ځاي کښ چه چرته دَ ايرو غورزَولو
ځاي وي يو به سي او په لرګو باندِ به ئې په اور وسيزِي دَ ايرو غورزَولو
په ځاي دِ وسيزلي شِي

۱۳ ۱۳ او که ټول جماعت دَ اسرائيل خطا وکړِي او دا خبره دَ جماعت
له سترګو نه پټه شوله او هغوي چه له هغه کار نه چه خداوند منع کړي
۱۴ دي وکړِي او دوي ګناهګار شول ۱۴ بيا هغه خطا چه دوي کړي وَه معلوم
شوه نو جماعت به يو څخوندر دَ خطا قربانئِ دَپارَ وړاندِ کړِي او هغه به
۱۵ دَ جماعت دَ خيمي دَ وړاندِ راولي ۱۵ او دَ جماعت مشران به خپل لاسونه
دَ خداوند دَ وړاندِ دَ هغه څخوندر په سر باندِ کيږدِي او هغه څخوندر
۱۶ دَ خداوند دَ وړاندِ حلال کړي شِي ۱۶ او ممسوح کوهين به دَ هغه څخوندر
۱۷ له وينو نه څه قدر دَ جماعت خيمي ته راوړِي ۱۷ او کوهين به خپله
ګوته په وينو کښ ومندِي او دَ خداوند دَ وړاندِ دَ پردي دَ وړاندِ به
۱۸ اووه ځلَ چِنړکاو کړِي ۱۸ او له هغي ويني نه به دَ مذبح په ښکرونو
باندِ چه دَ خداوند دَ وړاندِ دَ مذبح په خيمه کښ دي پوري کړِي او نوره
ټوله وينه به دَ سوزولو دَ قربانئِ دَ مذبح دَ لاندِ چه دَ جماعت دَ خيمي
۱۹ په دروازه باندِ ده وادِ روِي ۱۹ او ټوله وازده به له هغه نه وباسِي او به
۲۰ مذبح باندِ به ئې وسيزِي ۲۰ داسي به له څخوندر سره وکړِي لکه چه دَ
خطا دَ قربانئِ دَ څخوندر سره ئې کړِي وُو هغه شان به ده سره هم وکړِي
او کوهين به دَ هغوي دَپارَ کفاره ورکړِي نو هغوي به وبخښلي شِي —
۲۱ ۲۱ او هغه به هغه څخوندر له ډيري نه بهر يوسِي لکه چه ورنبي څخوندر
ئې سيزلي وه و به ئې سيزِي دا دَ خطا قرباني دَ جماعت دَپارَ ده

۲۲ ۲۲ او که يو سردار په خطا سره دَ خداوند الله خپل دَ حکمونو نه
۲۳ چه ئې منع کړي وه څه داسي کار وکړِي چه هغه ګناهګار شِي ۲۳ نو که
هغه خطا چه ده خطا کړي دَه ورته معلومه شِي نو هغه به يو نر چيلي

بي‌عيبَ دَخپلي قربانيِ دَپارَ راولي ۲۴ او خپل لاس به دَ هغه چيلي په سر باندِ ۲۴
کيږدي او هغه به هغه ځاي چه چرته دَ سوزولو قرباني دَ خداوند دَ وړاندِ
حلالولي شي حلال کړي دا دَ خطا قرباني ده ۲۵ او کوهين به دَ خطا دَ قربانيِ ۲۵
له وينې نه په خپله گوته باندِ څه واخلي او دَ سوزولو دَ قربانيِ دَ مذبح په
ښکرونو به يې پوري کړي او دَ هغه وينه به دَ سوزولو دَ قرباني دَ مذبح دَ
لاندِ واړوي ۲۶ او دَ هغه ټوله وازده به دَ سلامتيِ دَ ذبيحي دَ وازدي په شان ۲۶
په مذبح باندِ وسيزي او کوهين به دَ هغي خطا دَپارَ کفاره ورکړي نو
و به بخښلي شي

۲۷ او که څوک له عامو خلقو نه په خطا سره دَ خداوند دَ حکمونو ۲۷
نه چه يې منع کړي وُو څه کار وکړي چه هغه گناهکار شي ۲۸ نو که هغه ۲۸
خطا چه هغه خطا کړي وي ورته معلومه شي نو هغه دِ خپله قرباني
يوه بي‌عيبَ چيليِ دَ خپلي خطا دَپارَ چه هغه خطا کړي ده راولي ۲۹ او ۲۹
هغه به خپل لاس دَ خطا دَ قربانيِ په سر باندِ کيږدي او دَ خطا قربانيِ
به دَ سوزولو دَ قربانيِ په ځاي باندِ حلاله کړي ۳۰ او کوهين به دَ هغي ۳۰
له وينو نه څه په خپله گُته باندِ واخلي او دَ سوزولو دَ قربانيِ دَ مذبح په
ښکرونو به يې پوري کړي او دَ هغه ټوله وينه به دَ مذبح دَ لاندِ واړوي
۳۱ او دَ هغه ټوله وازده لکه چه دَ سلامتيِ دَ ذبيحي وازده جدا کولي شي ۳۱
هغه شان جدا به يې کړي او کوهين به هغه په مذبح باندِ دَ خداوند دَ
خوشبوييِ دَپارَ وسيزي او دَ هغه دَپارَ به کوهين کفاره ورکړي نو و به
بخښلي شي

۳۲ او که دَ خطا دَ قربانيِ دَپارَ گډوري راولي نو بي‌عيبَ گډوري ۳۲
به راولي او لاس خپل به دَ خطا دَ قربانيِ په سر باندِ کيږدي او هغه به
په هغه ځاي باندِ چه دَ سوزولو قرباني حلالولي شي دَ خطا دَ قربانيِ
دَپارَ حلاله کړي ۳۳ او کوهين به دَ خطا دَ قربانيِ له وينو نه څه په خپله ۳۳
گُته باندِ واخلي او دَ سوزولو دَ قربانيِ دَ مذبح په ښکرونو باندِ به يې پوري

۳۴ کړي او دَ هغې ټوله وينې به دَ مذبح دَ لاندِ واړوي ۳۵ او دَ هغې ټوله
وازده لکه چه دَ سلامتيٍ دَ ذبيحي له ګډوري نه وازده جدا کولي شي جدا
به يُ کړي او کوهين به هغه په مذبح باندِ دَ يَهُوَهْ دَ اور دَ قربانيٍ دَ
پاسَ وسيزي او کوهين به دَ هغه دَپارَ دَ هغه دَ خطا چه يُ کړي ده
کفاره ورکړي نو هغه به وبخښلي شي ۞

# پنځم باب

۱ آکه څوک داسي خطا وکړي چه دَ سوګند آواز واوري او دي شاهد
وِي چه ده ليدلي دي يا ورته معلوم دي که هغه يُ و نه ښيي نو هغه
۲ به خپله ګناه بار کړي ۲ او که څوک په څه پليت څيز لاس ولګوي لکه مرداره
دَ ناپاک ځناور يا مرداره دَ ناپاک څاروي يا مرداره دَ ناپاک چنجي او له
۳ هغه نه پټ شي او هغه ناپاک شي نو هغه به ګناهکار شي ۳ يا که هغه
دَ انسان په پليتيٍ لاس ولګوي هرڅه چه دَ هغه پليتيٍ وِي چه ورسره
پليت شي او له ده نه پټ کړي شه چه پوه شي نو هغه به ګناهکار
۴ شي ۴ يا که څوک سوګند وخوري بي فکرَ په خولي سره د نيکي يا دَ بديٍ کولو
دَپارَ هرڅيز چه وِي چه سړي بي فکرَ قسم خوري او هغه له هغه نه
پټ کړي شه او چه پوه شي نو دي له هغه څيزونو نه په يو کښي به
۵ ګناهکار شي ۵ او داسي به وشي چه دي په يو کښي له دوي نه ګناهکار
۶ شه نو اقرار دِ وکړي هغه چه خطا يُ کړي ده ۶ نو هغه دِ دَ خپلي ګناه
دَپارَ يَهُوَهْ له دَ خپلي خطا دَپارَ چه ده خطا کړي ده يوه ګډه له ګډو
نه اوريٍ يا چيليٍ دَ خطا دَ قربانيٍ دَپارَ راولي او کوهين به دَ هغه دَ
۷ خطا دَپارَ کفاره ورکړي ۷ او که دَ هغه دَ ګډ پسه لاس نه رسيږي نو
هغه دِ دَ خپلي ګناه دَپارَ چه ده خطا کړي ده دوه قمريٍ يا دوه دَ کونترو
بچي يَهُوَهْ له راوړي يو دَ خطا دَ قربانيٍ دَپارَ بل سوزولو دَ قربانيٍ دَپارَ
۸ ۸ بيا دغه دواړه دِ کوهين له يوسي او ورنبيٍ دِ چه دَ خطا دَ قربانيٍ دَپارَ
۹ ده وړانديِ کړي او دَ هغې سر دِ له څټ تاو کړي او جدا کوي دِ يُ نه ۹ او

دَ خطا دَ قربانئِ له وينو نه دِ دَ مذبح په ديوال باندِ چنړکاو کړي او باقي وينه
۱۰ به دَ مذبح دَ لاندِ وڅڅه شِي دا دَ خطا قربانئِ ده ۱۰ او هغه بله به دَ
حکم په شان دَ سوزولو قرباني کړي او دَ هغه دَ خطا دَپارَ چه ئي خطا
کړي ده کفاره دِ ورکړِي نو هغه به وبخښلي شِي
۱۱ ۱۱ او که دَ دوو قمرو يا دَ کونترو دَ دوو بچو دَ راوړلو لاس ئي
نه رسِي نو دَ خپلي قربانئِ دَپارَ هغه چه ده خطا کړي ده دَ ايفا لسمه حصه
ميده دِ دَ خطا دَ قرباني دَپارَ راوړِي په هغي دِ تيل نه اچوِي او نه دِپرِ
۱۲ لوبان بِردِي دا دَ خطا قرباني ده ۱۲ نو هغه دِ کوهين له راوړِي او کوهين
دِ له هغي نه دَ يادګارئِ دَپارَ خپل موټئ ډک واخلِي او هغه به دَ خداوند
دَپارَ دَ اور دَ قربانئِ دَپاسَ په مذبح باندِ وسيزِي دا دَ خطا قرباني ده
۱۳ ۱۳ او کوهين به دَ هغي خطا دَپارَ چه ده يو له هغه خيزونو نه خطا کړي
ده کفاره ورکړِي او هغه به وبخښلي شِي او باقي به دَ هديي دَ قربانئِ
په شان دَ کوهين شِي
۱۴ ۱۵ ۱۴ بيا خداوند دَ موسيٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۱۵ که سړي
خيانت وکړِي او په هيرِه سره دَ خداوند په مقدّسو کښِ خطا وکړِي نو خداوند
له دَ خپلي ګناه قربانئِ دَپارَ له ګنډک نه يو روغ مږ دِ راولِي دَ سپينِو زرو
دَ مثقالونو په حساب دَ مقدس دَ مثقال سره دِ برابر دَ هغه قيمت
۱۶ وِي دَ ګناه دَپارَ قرباني ۱۶ هغه څه چه هغه خطا کړي ده په مقدس کښ
دَ هغي بدل دِ ورکړِي او پنځمه حصه دِ په هغه زيانه کړِي او کوهين
له دِ ئي ورکړِي او کوهين دِ دَ هغي ګناه دَ قربانئِ له مږ نه دَ هغه
دَپارَ کفاره ورکړِي نو هغه به وبخښلي شِي
۱۷ ۱۷ او که څوک خطا وکړِي او دَ خداوند له ټولو حکمونو نه يوه ګناه
وکړِي چه دَ هغي کول منع وِي او په هغي باندِ پوه نه وِي نو هم ګناهګار
۱۸ به شِي او خپله بدي به بار کړِي ۱۸ نو له ګنډک نه دِ يو روغ مږ ستا دَ
قيمت سره برابر دَ ګناه دَ قربانئِ دَپارَ کوهين له راولِي او کوهين به دَ هغه

دَ خطا دَپارَ چه هغه خطا کړي وه او نه پوهیده کفاره ورکړي او هغه
١٩ به وبخښلي شي ١٩ دا دَ گناه قرباني دَ هغه ده چه هغه دَ خداوندِ وړاندِ
ضرور قصوروار دي +

## شپږم باب

١ ٢ ١ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ٢ که څوک خطا وکړي
او دَ خداوند خیانت وکړي او چه دَ خپل گاونډي سره دَ امانت په باب
کښ یا گانړي په باب کښ یا دَ غلا په باب کښ منکر شي او یا په خپل
٣ گاونډي باندِ ظلم وکړ ٣ یا یو ورک شوي څیز ومومي او په هغه منکر
شي او په دروغ سوگند وکړي له دي ټولو نه چه سړي کوي په هغي سره
٤ خطاکار کیږي ٤ نو دا به وشي چه خطائي وکړه او گناهکار شه نو
هغه څیز چه ده په زور اخستي دي یا ئي په ظلم سره گټلي دي یا هغه
چه ورته امانت وه یا هغه څیز چه ورک شوي څیز چه ئي ومونډ بیرته
٥ دِ ئي ورکړي ٥ یا په هر هغه څه چه هغه په دروغ سوگند وکړ نو هغه
څیز دِ پوره بیرته ورکړي او پنځمه حصه دِ په هغه زیاتي کاندِ او دَ قصور
٦ دَ ثابت کیدلو په ورځ دِ هغه چه دَ چا مال دي بیرته ورکړي ٦ او دَ
خپلي گناه قرباني دِ خداوند ته له گډو نه یو روغ پسه ستا دَ قیمت ویلو
٧ په برابر دَ گناه قرباني دِ کوهین له راولي ٧ او کوهین دِ دَ هغه دَپارَ دَ
خداوند دَ وړاندِ کفاره ورکړي نو وبه بخښلي شي له هغه ټولو کارونو نه
چه ده کړي دي او په هغي سره گناهکار شوي دي
٨ ٩ ٨ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ٩ هارون او دَ هغه
نه زامنو سره خبري وکړه او ورته ووایه چه دَ سوزولو دَ قربانئ شریعت
دا دي چه دَ سوزولو قرباني دِ په اورباندِ دَ مذبح دَپاسَ درسته شپه تر
١٠ صباحَ پوري وي او دَ مذبح اور دِ په هغي بلیږي ١٠ او کوهین دِ خپل دَ کتانو
جامه واغونډي او دَ کتانو پرتوګ دِ په خپل ځان واغونډي او هغه
دَ سوزولو قرباني چه په مذبح باندِ سوزي او دَ هغي ایره دِ پورته کړي او مذبح

۱۱ ته دِ ئې نژدې کيږدي ۱۱ پس خپل زروکي دِ وباسي او نور زروکي دِ واغوندي
۱۲ او هغه ايره دِ له ډيرې نه بهر بو پاک ځاي ته يوسي ۱۲ او اور دِ په
مذبح باندِ بليږي چه هغه مړ نه شي او کوهين دِ په هغه باندِ هر صباح
لرګي بلَوي او په هغه دَپاسَ دِ دَ سوزلو قرباني برابره ږدي او په هغې دَپاسَ
۱۳ دِ دَ سلامتيا دَ قربانو وازده سيزي ۱۳ اور دِ مدام په مذبح باندِ بليږي
او مړ دِ نه شي
۱۴ ۱۴ او دَ هديې شريعت دا دي چه هغه دِ بني‌هارون دَ مذبح په خوا
۱۵ کښ دَ خداوند دَ وړاندِ راوړي ۱۵ او له هغې نه دِ يو موټي دَ هديې دَ قربانۍ
له ميدې نه او څه ذده له تيلو نه او هغه ټول لوبان چه دَ هديې په
قربانۍ دي وادِخلي او په مذبح باندِ دِ دَ خوشحالۍ خوشبوئي دَ خداوند دَ
۱۶ يادګارۍ دَپارَ دِ وسيزي ۱۶ او باقي دِ هارون او دَ هغه زامن وخوري فطيره
دِ وخوړلي شي په مقدس ځاي کښ دَ جماعت دَ خيمې په غولي کښ دِ ئې
۱۷ هغوي وخوري ۱۷ خميره دِ نه شي پخولي ما دَ اور له قربانو خپلو نه دغه
دوي له حصه ورکړې دَه دغه مقدسه له مقدّسو ده لکه دَ خطا قرباني
۱۸ او دَ ګناه قرباني ۱۸ ټول نارينه بني‌هارون دِ له هغې نه وخوري ستاسو
پيړيۍ په پيړيۍ دَ خداوند دَ اور دَ قربانو په بابت دا حکم دي هر څوک چه دا
مسه کړي نو مقدّس به شي
۱۹ ۲۰ ۱۹ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې وئې ويل چه ۲۰ دَ هارون او دَ
هغه دَ زامنو قرباني چه هغوي دَ خپلو ممسوح کيدلو په ورځ کښ خداوند له
قرباني کړي دا ده لسمه دَ ايفا دَ ميدې نه نيمه دَ هغې دِ صباح او نيمه دَ
۲۱ هغې دِ نماښام مدام کړي ۲۱ او دغه دِ په تيلو کښ په تبۍ باندِ پخه کړې شي
او پخه شوي دِ راوړي او دَ هديې دَ قربانۍ پخه کړي شوي ټکړې ټکړې
۲۲ کړي چه دَ خداوند دَپارَ دَ خوشحالۍ خوشبوئي وي ۲۲ او دَ هغه له زامنو نه
دِ هغه کوهين چه دَ هغه په ځاي ممسوح شوي وي هغه دِ ئې تيار کړي
۲۳ دا دَ هميشه دَپارَ حکم دي چه هغه دِ ټوله خداوند ته وسيزلي شي ۲۳ دَ

کوهین هره یوه دَ نذر قربانۍ دِ ټوله وسیزلي شي او و دِ نه خوړلي شي
۲۴ ۲۵ ۲۴ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲۵ هارون
سره او دَ هغه له زامنو سره خبري وکړه او ورته ووایه چه دَخطا دَ
قربانۍ شریعت دا دي چه هرځاي چه دَ سوزلو قرباني حلالولي شي هم
هلته دِ دَ خطا قرباني دَ خداوند دَ وړاندِ حلاله کړي شي دغه پاکه له پاکونه
۲۶ ده ۲۶ او کوهین چه هغه دَ خطا قرباني کوي هغه دِ وخوري او هغه دِ
۲۷ په مقدّس ځاي کښ دَ جماعت دَ خیمي په غولي کښ وخوړلي شي ۲۷ هر
څوک چه دَ هغي غوښي مسه کړي پاک به شي او چه دَ هغي وینه څڼرکاو
کولي شي او دَ چا په زړوکو باندِ له هغه وینو نه پریوزي نو هغه دِ په پاک
۲۸ ځاي باندِ ووینځي ۲۸ مګر دَ خاورو هغه لوښي چه هغه په کښ خوشته
کړي شي مات دِ کړي شي او که دَ مِسّو په لوښي کښ خوشته کړي شي
۲۹ نو هغه دِ مانځ کړي شي او په اوبو دِ بنه ووینځلي شي ۲۹ او ټول نارینه
۳۰ کوهینانِ دِ له هغي نه وخوري دغه پاکه له پاکو نه دَه ۳۰ او هره دَ خطا
قرباني چه دَ هغي وینې دَ جماعت خیمي نه ننه یستلي شوي وي چه له
هغي نه په مَقدِس کښ کفاره ورکړي شي نو هغه دِ ونه خوري شي په
اور دِ وسیزلي شي ❖

# اووم باب

۱ ۲ او دَ ګناه دَ قربانۍ شریعت دا دي چه هغه دَ پاکو پاکه ده ۲ په هرځاي
کښ چه دَ سوزلو قرباني حلالوي هلته دِ دَ ګناه قرباني هم حلاله کړي او دَ
۳ هغي وینې دِ ګیر چاپیر له مذبح نه څڼرکاو کړي ۳ او دَ هغي واړه وازده دِ
۴ نزدي راوړي دَ هغي څورب لم او هغه وازده چه لړمون پټوي ۴ او دواړه
پښتورګي او هغه وازده چه په هغو باندِ ده چه په تشو باندِ ده او هغه
۵ جلۍ چه په اینه باندِ دَه سره دَ پښتورګو دِ ئي یوسي ۵ او کوهین دِ
هغه په مذبح باندِ وسیزي چه دَ خداوند دَ پارَ دَ اور قرباني شي
۶ دَا دَ ګناه قرباني ده ۶ او هر یو نارینه له کوهینانو نه دِ له هغي نه وخوري

٧ او هغه دِ په پاک ځاي کښ وخوري شي ځکه چه دا پاکه له پاکو ده ٧ لکه
چه دَ خطا قرباني ده داسي دَ گناه قرباني ده او دَ دواړو دَپارَ يو شريعت
٨ دي او دا به دَ هغه کوهين شي چه دَ هغه دَپارَ کفاره ورکوي ٨ او
کوهين چه دَ چا سړي دَ سوزلو قرباني کوي نو هغه څرمن دَ هغي
٩ سوزلو دَ قرباني چه نزدي ئي راوري دَه دَ هغه کوهين به شي ٩ او ټوله
دَ هديي قرباني چه په تنور کښ پخه کړي شي يا په کټوئ کښ يا په تبئ
١٠ باندِ نو هغه به دَ هغه کوهين شي چه ئي نزدي راوړي ١٠ او هره يوه
دَ هديي قرباني چه تيل ور سره گډ شوي وي يا سپوره وي هغه ټوله
به دَ هارون دَ زامنو دَپارَ شي هر يو به دَ بل سره برابر شي
١١ ١١ او دَ سلامتيا دَ ذبحي چه خداوند له نزدي راوړي دا شريعت
١٢ دي چه ١٢ که هغه دَ شکراني دَپارَ نزدي راوړي نو دَ هغي شکراني دَ ذبحي
سره دِ فطير ککوړي په تيلو کښ اغږلي شوي او فطيري چپاتئ په تيلو
غوړي شوي او په تيلو کښ اغږلي شوي دَ ميدي د ککوړو سره نزدي راوړي
١٣ ١٣ او سره له ککوړو دَ پنيري ډوډئ هغه خپله قرباني سره دَ ذبحي دَ
١٤ خپلي سلامتيا قرباني دَ يادگاري دَپارَ راوړي ١٤ او له هري يوي قربانئ
نه دِ يو خداوند ته دَ خوزولو دَ قربانئ دَپارَ نزدي کړي او دا به دَ هغه
١٥ کوهين شي چه دَ سلامتئ دَ قربانئ وينې چنړکاو کوي ١٥ او دا هغه دَ
سلامتيا دَ شکراني دَ ذبحو غوښي دِ په هغه ورځ وخوړلي شي چه قرباني
١٦ کولي شي او له هغو نه دِ تر صباحَ پوري هيڅ پري نه ښولي شي ١٦ او که
ذبيحه دَ قرباني دَ هغه نذر وي يا نفل قرباني وي نو هم هغه ورځ چه
خپله ذبيحه قرباني کوي و دِ خوړلي شي او هغه چه له هغي نه پاتي شي
نو بله ورځ دِ هم له هغي نه وخوړلي شي او هغه چه دَ ذبحي له غوښو
١٨ نه په دريمه ورځ پاتي شي نو په اور دِ وسيزلي شي ١٨ نو که دَ سلامتئ
دَ ذبحو له غوښو نه څه په دريمه ورځ وخوري شي نو هغه به منظور
نه کړي شي او دَ قرباني کوونکي په حساب کښ به و نه لګولي شي بلکه

مکروهي به شي او هغه څوک چه له هغه نه وخوري نوخپله کناه به بار
۱۹ کړي ۱۹ او هغه غوښي چه په څه ناپاک څیز ولګیږي و دِ نه خوري شي او
به اور دِ وسیزلي شي او غوښي چه دي نول چه پاک وي له هغي نه دِ
۲۰ خوري ۲۰ مګر هرڅوک چه دَ خداوند دَ سلامتیا دَ ذبیحي غوښه هغه وقت
خوري چه کوم وقت په هغه باندِ څه پلیتي وي نو هغه سړي دِ له خپل
۲۱ امت پري کړي شي ۲۱ او هغه څوک چه څه ناپاکي مسه کړي لکه دَ سړي
ناپاکي مسه کړي یاناپاک ځناور مسه کړي یا څه ناپاک مکروه مسه کړي
بیا وخوري دَ سلامتیا دَ ذبیحي له غوښي نه هغه چه دَ خداوند دَپارَ ده نو
هغه سړي دِ هم له خپل امت پري کړي شي
۲۲ ۲۳ ۲۲ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲۳ بني اسرائیلو
سره خبري وکړه او ورته ووایه چه دَ غوایه او دَ ګډوري او دَ چیلي هیڅ
۲۴ وازده مه خوريِ ۲۴ او دَ مرداري وازده یا چه ماتوونکي ځناور مات کړي
وي نو هغه به نورخدمت کښ استعمالولي شي تاسو به هیڅري له هغي
۲۵ نه نه خوريِ ۲۵ که څوک سړي دِ داسي ځاروي وازده وخوري چه له هغه
خلق خداوند دَ اور قرباني کوي نو هغه خوړونکي سړي به له خپلَ امتَ پریکړي
۲۶ شي ۲۶ او مه خوريِ هیڅ وینه په ټولو استوګنو خپلو کښ له مرغه نه
۲۷ او له ځاروي نه ۲۷ او هرڅوک چه له څه وینو نه وخوري هغه به له
خپلَ امت پري کړي شي
۲۸ ۲۹ ۲۸ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲۹ بني اسرائیلو
سره خبري وکړه او ورته ووایه چه هغه څوک چه دَ خداوند دَپارَ دَ خپلي
سلامتيِ قرباني نذر کوي نو خپله قرباني دِ دَ سلامتیا له ذبیحي نه خداوند له
۳۰ راولي ۳۰ دَ هغه لاسونه دِ دَ خداوند دَ اور قرباني راوړي وازده دِ دَ سیني سره
راوړي چه هغه سینه دَ خداوند دَ وړاندِ دَ خوځولو دَ قرباني دَپارَ وخوځولي شي
۳۱ ۳۱ کوهن دِ هغه وازده په مذبح باندِ وسیزي خو سینه به دَ هارون او دَ هغه
۳۲ دَ زامنو وي ۳۲ او تاسو دَ سلامتيُ له ذبیحو نه ښي ولَيّ دَ پورته کولو قرباني

کوهین له ورکړي ۳۳ او دَ هارون دَ زامنو هغه سړي چه دَ سلامتیا دَ ذبحي ۳۳
وینه او وازده قرباني کوي بني ولي دِ هغه خپله حصّه واخلي ۳۴ ځکه چه دَ ۳۴
خوځولو سینه او دَ پورته کولو ولي دَ بنيِ اسرائیلو دَ سلامتئ له ذبحونه ما
آخستي دِي او هارون کوهین له دَ هغه ځامنو له مِ ورکړي دِي دَ همیشه
حق دَپارَ دَ بنيِ اسرائیلو له طرفه

۳۵ دغه دَ خداوند دَ اور له قربانو نه دَ هارون دَ مسیحه کیدلو ۳۵
حصه دَه او دَ هغه دَ زامنو دَ مسیحه کیدلو حصه ده په هغه ورځ کښ
چه دوي ئ دَ خداوند کهانت ته نزدي کړل ۳۶ په هغه ورځ کښ چه خداوند ۳۶
دوي ممسوح کړل او ورته ئ حکم کړي وه چه له بنيِ اسرائیلو نه دِ دوي
له ورکړي شِي دا دَ دوي دَ پیړو دَپارَ همیشه حق دي ۳۷ شریعت دَ سوزلو ۳۷
دَ قربانئ او دَ هدیي او دَ خطا دَ قربانئ او دَ گناه دَ قربانئ او دَ ممسوح والي
او دَ سلامتیا دَ ذبحي دا دي ۳۸ چه خداوند دَ سینا په غرهِ موسیٰ ته حکم ۳۸
کړي وه په هغه ورځ چه بنيِ اسرائیلو ته ئ ویلي وُو چه دَ سینا په
بیابان کښ دَ خداوند دَپارَ خپلي قرباني ورکړئ ٭

## اتم باب

۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئ ویل چه ۲ هارون او ورسره دَ ۲
هغه ځامن او زروکي او دَ مسح کولو تیل او دَ خطا دَ قربانئ څخوندر او دوه
مړونه او دَ فطیرو ډوډو ټوکرئ واخله ۳ او ټول جماعت دَ جماعت دَ خیمي ۳
دروازي ته جمع کړه ۴ نو لکه چه خداوند ور ته حکم کړي وه موسیٰ هغه ۴
وکړل نو ټول جماعت دَ جماعت دَ خیمي دروازي ته جمع شه ۵ او موسیٰ جماعت ۵
ته وویل چه دا دِي هغه چه خداوند ئ دَ کولو دَپارَ حکم کړي دي ۶ بیا موسیٰ ۶
هارون او دَ هغه ځامن نزدي کړل او په اوبو ئ ولمبول ۷ او قمیص ئ هغه ۷
ته واغونداوه او کمربند ئ وله وتاړه او جبّه ئ ور واغوندوله او افود ئ
پرِ واچاوه او دَ افود کمربند ئ وله وتاړه او په هغه سره ئ مضبوط کړ-
۸ او په هغه باندِ ئ سینه بند وتاړه او په سینه بند کښ ئ اوریم او تمیم ۸

۹ جراؤ کړل ۹ او دَ هغه په سر ئي پګړۍ کښيښودہ او دَ مخ طرف ته ئي په پګړۍ
باندِ دَ سرو زرو تختۍ مقدّس تاج کښيښودي لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم
۱۰ کړي وه ۱۰ بيا موسیٰ دَ مسح کولو تيل واخستل او مسکن او هرڅه چه
۱۱ په کښں وُو مسح ئي کړل او هغه ئي مقدس کړل ۱۱ او له هغه نه ئي
اووه ځل په مذبح باندِ څنړکاؤ کړل او مذبح او دَ هغه ټول لوښي او
۱۲ حوض او دَ هغه کرسۍ ئي مسح کړلي د هغو دَ مقدّس کولو دَپارَ ۱۲ او دَ
مسح کولو له تيلو نه ئي څه دَ هارون په سر باندِ واړول او هغه ئي مسح
۱۳ کړ دَ هغه دَ مقدّس کولو دَپارَ ۱۳ بيا موسیٰ بڼي هارون را وړاندِ کړل
او هغو ته ئي قميصونه واغوندول او کمربندونه ئي وله وتړل او هغو ته
۱۴ ئي ټوپۍ په سر کړلي لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه ۱۴ بيا ئي دَ خطا
دَ قربانۍ سخوندر وړاندِ کړ او هارون او دَ هغه ځامن دَ خطا دَ قربانۍ دَ
۱۵ سخوندر په سر لاسونه کښيښول ۱۵ نو هغه ئي حلال کړ او موسیٰ دَ هغه
وينه واخستله او هغه په خپله ګُته ګيرچاپير دَ مذبح په ښکرونو پوري
کړله او مذبح ئي پاک کړ او وينه ئي دَ مذبح دَ لاندِ واړوله او هغه
۱۶ ئي مقدس کړ چه دَ هغه دَپارَ کفاره وکړي ۱۶ او واړه وازده چه لړمون
پټوي او هغه جلۍ چه په اينه باندِ ده او دواړه پښتورګي او وازده دَ هغو
۱۷ ئي واخستل او هغه موسیٰ په مذبح وسيزل ۱۷ او هغه سخوندر او دَ
هغه څرمن او دَ هغه غوښه او دَ هغه غوشايان ئي بهر له ډيري نه په
۱۸ اور وسيزل لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه ۱۸ بيا دَ سوزلو دَ قربانۍ
مړ ئي وړاندِ کړ نو هارون او دَ هغه زامنو دَ هغه مړ په سر لاسونه
۱۹ کښيښول ۱۹ نو هغه ئي حلال کړ او موسیٰ دَ هغه ويني ګيرچاپير دَ مذبح
۲۰ نه څنړکاؤ کړلي ۲۰ بيا هغه مړ ئي اندام اندام پرې کړ او موسیٰ سر او اندامونه
۲۱ او وازده وسيزل ۲۱ او لړمون او پښي ئي په اوبو ووينځل او موسیٰ هغه
ټول مړ په مذبح باندِ وسيزه دَ سوزلو قرباني دَ خوشبوۍ دَپارَ دا اور قرباني
۲۲ دَ خداوند دَپارَ وه لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه ۲۲ او هغه دويم مړ

دَ ممسوح والي مڼ يُ نژدي کړ نو هارون او دَ هغه زامنو خپل لاسونه
۲۳ دَ مڼ په سر کښيښول ۲۳ نو هغه يُ حلال کړ او موسیٰ دَ هغه له وينو
نه څه واخستله او دَ هارون دَ ښي غوږ په پستکيِ او دَ هغه دَ ښي لاس
۲۴ په کُته کُته او دَ هغه ښيِ پښي په کُته کُته يُ پوري کړله ۲۴ او دَ هارون
زامن يُ نژدي کړل او موسیٰ له هغي وينې نه دَ هغو دَ ښو غوږونو په
پستکو او په کُتوکُتو دَ ښو لاسونو دَ هغو او په کُتوکُتو دَ ښو پښو
پوري کړله او موسیٰ هغه وينه گيرچاپير په مذبح باندِ چنړکاؤ کړله -
۲۵ ۲۵ بيا هغه وازده او خورب لم او ښوله وازده چه په لړمون ده او جلیِ
چه په اِينه ده او دواړه پښتورکي او وازده دَ هغو او ښي ولي يُ واخستل
۲۶ ۲۶ او دَ فطيرو ډوډو له ټوکريِ نه چه دَ خداوند دَ وړاندِ وه يو ککوړي
فطير او يو ککوړي غوړ کړي شوي او يوه چپاتيِ يُ واخستل او هغه يُ
۲۷ په وازده او په ښي ولي کښيښولِ ۲۷ او هغه ټول دَ هارون په لاسونو
او دَ هغه دَ ځامنو په لاسونو کښيښول او هغه يُ دَ خداوند دَ وړاندِ دَ
۲۸ خوځولو دَ قربانيِ دَپارَ وخوځول ۲۸ بيا موسیٰ دَ هغو له لاسونو نه واخستل
او هغه يُ په مذبح باندِ دَ سوزولو دَ قربانيِ دَپاسَ وسيڅل دا ممسوح والي
۲۹ دَ خوشبويِ دَپارَ وه دَ اور قرباني دَ خداوند دَپارَ وَه ۲۹ او موسیٰ سينه
واخستله او هغه يُ دَ خوځولو دَ قربانيِ دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ وخوځوله
دا دَ ممسوح والي له مڼ نه دَ موسیٰ حصه وَه لکه چه خداوند موسیٰ ته
۳۰ حکم کړي وه ۳۰ بيا موسیٰ دَ مسح کولو تيل او له هغي وينې نه چه په
مذبح باندِ وَه واخستل او په هارون او دَ هغه په زړوکو باندِ او دَ هغه
په زامنو او دَ هغه دَ ځامنو په زړوکو باندِ چه ورسره وُو چنړکاؤ کړل
او هارون او دَ هغه زړوکي او ورسره دَ هغه ځامن او دَ هغه دَ ځامنو
۳۱ زړوکي يُ مقدّس کړل ۳۱ بيا موسیٰ هارون ته او دَ هغه ځامنو ته وويل
چه دا غوښي دَ جماعت دَ خيمي دروازي څخه يخې کړيِ او هغه هم هغه
ځاي دَ هغي ډوډيِ سره چه دَ ممسوح والي په ټوکريِ کښ دَه وخوريِ لکه

٣٢ چه حکم مِ کړي دي وم ويل چه هارون او دَ هغه ځامن دِ يُ وخوري ٣٢ او
٣٣ چه غوښه او ډوډيُ پاتي شي هغه دِ په اور وسيزيِ ٣٣ او تاسو به دَ
جماعت دَ خيمي له دروازي نه تر اووه ؤ ورځو پوري بهر نه ووځيُ تر څو
چه ستا دَ ممسوح والي ورځي پوره نه شي چه په اووه ؤ ورځو کښي به دي
٣٤ تاسو ممسوح کړي ٣٤ لکه چه هغه نن کړي دي هم داسي خداوند حکم کړي
٣٥ دي چه وِ دِ کړي شي چه ستاسو دَپارَ کفاره شي ٣٥ دَ جماعت دَ خيمي په
دروازي پوري تر اووه ؤ ورځو شپه او ورځ پاتي شيِ او دَ خداوند ساتلي وساتيِ
٣٦ چه تاسو مړه نه شيِ داسي حکم کړي شوي يم ٣٦ نو هارون او دَ هغه
ځامنو وکړل ټول څه چه خداوند پرِ حکم کړي وه دَ موسیٰ په لاس +

## نهم باب

١ ١ او په اتمه ورځ کښي موسیٰ هارون او دَ هغه ځامن او دَ بني‌اسرائيلو
٢ مشران وبلل ٢ او هارون ته يُ وويل چه ته يو خسي دَ خطا دَ قربانيِ
دَپارَ او يو مږ دَ سوزلو دَ قربانيِ دَپارَ چه روغ وِي راوله او هغوي دَ
٣ خداوند دَ وړاندِ قرباني کړه او دَ بني‌اسرائيلو سره خبري وکړه ورته ووايه چه
يو چيلي له بزو نه دَ خطا دَ قربانيِ دَپارَ او يو خسي او ووري دَ يو يو کال روغ
٤ دَ سوزلو دَ قربانيِ دَپارَ ٤ او يو غوايه او يو مږ دَ سلامتيا دَ قربانيِ دَپارَ دَ
ذبح کولو دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ او دَ هديي قرباني دَ تيلو سره اخلي ځکه چه
٥ نن ورځ به خداوند تاسو ته ښکاره کيږي ٥ نو هغوي څه لکه چه موسیٰ حکم
کړي وه دَ جماعت دَ خيمي دَ وړاندِ راوستل او ټول جماعت نزدي راغي او دَ
٦ خداوند دَ وړاندِ ودريد ٦ او موسیٰ وويل چه دا هغه کار دي چه خداوند تاسو ته
٧ حکم کړي وه چه تاسو يُ وکړيِ نو دَ خداوند جلال به تاسو ته ښکاره شيِ ٧ بيا
موسیٰ هارون ته وويل چه مذبح ته نزدي شه او خپله دَ خطا قرباني او
خپله دَ سوزلو قرباني وکړه او دَ خپل ځان دَپارَ او دَ امت دَپارَ کفاره وکړه
او دَ هغو دَپارَ قرباني وکړه او دَ هغو دَپارَ کفاره ورکړه لکه چه خداوند حکم
٨ کړي دي ٨ هارون مذبح ته نزدي شه او دَ خطا دَ قرباني خسي يُ حلال کړ

هغه چه ذَده دَ خَان دَپارَ وه ٩ او دَ هارون ځامنو هغه له وينه راوړله ٩
او هغه خپله ګُته په وينه کښ غوټه کړله او هغه ئې دَ مذبح په ښکرونو
باندِ پوري کړله او وينه ئې دَ مذبح دَ لاندِ واړوله ١٠ او وازده او پښتورګي ١٠
او جګرِ چه دَ خطا دَ قربانئِ له اِبنه نه په مذبح باندِ ئې وسيزل لکه چه
خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه ١١ او غوښه او څرمن ئې له ډيري نه بهر په ١١
اور باندِ وسيزل ١٢ بيا دَ سوزلو قربانئِ ئې حلاله کړله او دَ هارون ځامنو ١٢
وينه ده له راوړله او هغه ئې له مذبح نه کيرچاپير څڼرکاؤ کړله ١٣ دَ ١٣
سوزلو قربانئِ ئې اندام اندام او سر ئې وله ورکړل نو هغه ئې په مذبح
وسيزل ١٤ او لرمون او پښي ئې ووينځلي او هغه ئې په مذبح باندِ دَ سوزلو ١٤
دَ قربانئِ دَپاسه وسيزلي ١٥ بيا دَ قوم قربانئِ ئې وړاندِ راوستله او هغه دَ ١٥
قوم دَ خطا دَ قربانئِ چيلي ئې ونيو او حلال ئې کړ او هغه ئې دَ وړمبئِ
په شان دَ خطا دَپارَ قربانئِ کړ ١٦ بيا ئې دَ سوزلو قربانئِ وړاند راوستله ١٦
او هغه ئې دَ قاعدي سره برابر قربانئِ کړله ١٧ بيا ئې دَ هديي قربانئِ وړاندِ ١٧
راوړله او له هغي نه ئې يو موټي واخست او هغه ئې په مذبح باندِ زياتي
دَ سوزلو دَ قربانئِ له صباح نه وسيزه ١٨ او غوايه او مږ چه دَ قوم دَپارَ ١٨
دَ سلامتيا ذبيحي وي هغه ئې حلال کړل او دَ هارون ځامنو ئې وينه
هغه له راوړله او هغه ئې په مذبح کيرچاپير څڼرکاؤ کړله او وازده دَ غوايه
ئې هم ١٩ او دَ مږ ځورب لم او هغه چه لرمون پټوي او پښتورګي او جګرِ ١٩
دَ ابني ٢٠ نو وازدي ئې په سينو کښيښولي او هغه هغه وازدي په مذبح ٢٠
وسيزلي ٢١ او سيني او ښي ولي لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه هارون ٢١
دَ خداوند دَ وړاندِ دَ خوځولو دَ قربانئِ دَپارَ وخوځول ٢٢ او هارون دَ جماعت ٢٢
طرف ته خپل لاس پورته کړ او هغو له ئې برکت ورکړ او دَ خطا دَ قربانئِ
او دَ سوزلو دَ قربانئِ او دَ سلامتيا دَ قربانئِ له کولو نه راکوز شه ٢٣ بيا ٢٣
موسیٰ او هارون دَ جماعت په خيمه کښ ننوتل او بهر را ووتل او قام ته
ئې برکت ورکړ نو په ټول قوم باندِ دَ خداوند جلال ښکاره شه ٢٤ او دَ ٢٤

خداوند له خوا نه اور راووت او په مذبح بانْدِ ئې دَ سوزلو قرباني او وازدي
وخوړلي اوچه ټول جماعت ولید نو چغي ئې کړلي او پرمخي پریوتل *

# لسم باب

۱ آ بیا ناداب او ابیهو دَ هاروت ځامنو هر یو له دوي نه خپل مجمر واخست
او اور ئې په کښې واچاوه او بخور پرِ کښیښودل او بیګانه اور ئې یهوه ته
۲ وړاندِ کړ چه په هغه بانْدِ ئې دوي ته حکم نه وه کړي ۲ نو دَ خداوند له طرفَ
۳ اور راووت او هغوي ئې وخوړه نو دَخداوند دَ وړاندِ مړه شول ۳ نو موسیٰ
هارون ته وویل چه دا دِي هغه چه خداوند خبري کړي دِي او ویلي ئې دِي
چه په هغي کښې چه ما ته نژدي راځي زه مقدس کړي شم او دَ ټول قام
۴ دَ وړاندِ زه مجید کړي شم نو هارون چپ شه ۴ نو موسیٰ میشائیل او الصفان
ځامن دَ عزئیل چه دَ هارون تره وه راوبلل او ورته ئې وویل چه نژدي
راشئِ او وروڼه خپل دَ مقدس له مخي نه بهر ته دَ ډیري نه پورته کړئِ
۵ ۵ نو هغوي نژدي شول او هغوي ئې په خپلو قمیصونو کښې بهر ته دَ ډیري
۶ نه پورته کړل لکه چه موسیٰ ویلي وُو ۶ بیا موسیٰ هارون ته او دَ هغه
ځامنو الیعازار او ایتامار ته وویل چه خپل سرونه مه سرتوروئِ او خپل
زړوکِي مه شلوئِ هسي نه وِي چه مړه شئِ او په ټول جماعت بانْدِ غضب
نازل کړي شي مګر ټول کور دَ اسرائیل چه ستاسو وروڼه دِي په هغه
۷ سوَو بانْدِ چه خداوند سوِي دِي ودِ ژاړِي ۷ او دَ جماعت دَ خیمي له دروازي
نه به ووزِي هسي نه وِي چه مړه شئِ ځکه چه دَ خداوند دَ مسح کولو تیل
په تاسو بانْدِ دِي نو هغو دَ موسیٰ په ویلو بانْدِ عمل وکړ
۸ ۸ بیا خداوند دَ هارون سره خبري وکړي و ئې ویل چه ۹ هر کله چه ته
۹ او ستا ځامن در سره دَ جماعت خیمي ته ننوزئِ نو شراب او مستوونکي څیز
مه څښئِ هسي نه وِي چه مړه شئِ دا ستاسو په پیړئِ په پیړئِ همیشه
۱۰ حکم دي ۱۰ اوچه تاسو په پاکو او پلیتو اوحرامو او حلالو کښې فرق وکړئِ
۱۱ ۱۱ اوچه تاسو هغه ټول حکمونه چه خداوند دَ موسیٰ په وسیله سره تاسو ته

ويلي دي بني اسرائيلو ته وښيئ
۱۲ بيا موسیٰ هارون ته او دَ هغه ځامنو اليعازار او ايثامار ته ۱۲
چه پاتي وُو وويل چه دَ هديي قربانۍ هغه چه دَ خداوند دَ اور له قربانو
نه پاتي شي واخلئ او هغه مذبح ځنګه فطيره وخورئ ځکه چه دا پاکه
له پاکو ده ۱۳ او هغه په پاک ځاي کښ وخورئ ځکه چه دَ خداوند دَ اور له ۱۳
قربانو نه دا ستا حق او ستا دَ ځامنو حق دي ځکه چه ما ته داسي حکم
شوي دي ۱۴ او دَ خوځولو سينه او دَ پورته کولو ولي به پاک ځاي کښ ته او ۱۴
ستا ځامن او ستا لونړه دِ له تا سره وخوري ځکه چه دا ستا حق او ستا
دَ ځامنو حق دي چه دَ بني اسرائيلو دَ سلامتيا دَ قربانو دَ حلالولو نه
درکړي شوي دِي ۱۵ او دَ پورته کولو ولي او دَ خوځولو سينه دِ هغوي دَ وازدي ۱۵
دَ اور په قربانۍ راوړي چه هغه دَ خداوند دَ وړاندِ دَ خوځولو دَ قربانۍ دَپارَ
وخوځولي شي نو دا به ستا دَپارَ او ستا سره ستا دَ زامنو دَپارَ دَ هميشه
دَپارَ حکم شي لکه چه خداوند حکم کړي دي
۱۶ او موسیٰ دَ خطا دَ قربانۍ مړ ولټاوه نو ګوريِ هغه سوي وه ۱۶
نو دَ هارون پاتي شوي ځامنو اليعازار او ايثامار ته په قهر شه او
وئي ويل ۱۷ څه شوِي دِي چه تاسو دَ خطا قربانۍ په پاک ځاي کښ ونه خوړله ۱۷
ځکه چه دا پاکه له پاکو ده او دا ئي تاسو ته درکړي ده چه دَ جماعت ګناه
تاسو بار کړئ او دَ خداوند دَ وړاندِ دَ هغو دَپارَ کفاره ورکړئ ۱۸ ګورئ وينه ۱۸
دَ هغي په مقدس کښ ننه يستلي شوي نه وه لازم وُو چه هغه تاسو
په مقدس کښ خوړلي وي لکه چه ما حکم کړي وه ۱۹ نو هارون ۱۹
موسیٰ ته وويل چه ګوره هغوي هم نن ورځ دَ خطا قرباني او دَ سوزلو
قرباني دَ خداوند دَ وړاندِ قرباني کړلي او ما ته هم داسي حادثه پيښه
شوي ده نو که چري ما هم نن ورځ دَ خطا قرباني خوړلي وي نو دَ خداوند
په نظر کښ به ښه وه څه ؟ ۲۰ نو هر کله چه موسیٰ دا واوريدل په ۲۰
نظر کښ ئي ښه راغي +

# يولسم باب

١ ١ بيا خداوند د موسیٰ او دَ هارون سره خبري وكړي او ورته ئي وويل چه
٢ ٢ تاسو بنيِ اسرائيلو سره خبري وكړئ او ورته ووايئ چه هم دا دِي هغه
حيوانات چه ئي تاسو خورئ له ټولو ځارويو نه هغه چه په زمكه باندِ دِي
٣ ٣ هرڅه نه چه سوي ئي چاودي وِي او دوه سوي شوي وِي او شخوند
۴ كوِي له ځارويو نه نو تاسو به هغه خورئ ۴ مگر له هغو نه چه شخوند
كوِي او سوي ئي چاودي دِي مه خورئ اوښ دي ځكه چه دي شخوند
٥ كوِي ليكن دَده سوي چاودي نه دِي نو هغه ستاسو دَپارَ ناپاك دي ٥ او
وَبَرَ ځكه چه هغه شخوند كوِي ليكن سوي ئي چاودي نه دِي نو هغه ستاسو
٦ دَپارَ ناپاك دي ٦ او سويه ځكه چه هغه شخوند كوِي ليكن سوي ئي چاودي
٧ نه دي نو هغه ستاسو دَپارَ ناپاكه دَه ٧ او خنزير ځكه چه دَ هغه سوي
چاودي دِي او دوه سوي شوي دِي ليكن شخوند نه كوِي نو هغه ستاسو
٨ دَپارَ ناپاك دي ٨ تاسو دَ دغو غوښي مه خورئ او دَ دغو مردارو له لاس
مه وروړئ ځكه چه دغه ستاسو دَپارَ ناپاك دِي
٩ ٩ او هغه ټول ځيزونه چه په اوبو كښ دِي نو تاسو به ئي خورئ هغه
دا دِي هر هغه څه چه دَ هغه وزر وِي او تنكرئ پر وِي په قالي دريابونو
١٠ كښ په سيندونو كښ تاسو هغه خورئ ١٠ هغه ټول چه دَ هغو نه وزر
وِي او نه ئي تنكرئ وِي په دريابونو كښ په سيندونو كښ له ټولو نه
١١ چه په اوبو كښ اوسي هغه ستاسو دَپارَ مكروه دِي ١١ هغه ستاسو دَپارَ
مكروه دِي تاسو دَ هغو له غوښو نه مه خورئ او مرداره دَ هغو مكروه
١٢ گڼرئ ١٢ ټول هغه په اوبو كښ چه نه ئي وزر وِي او نه ئي تنكري وِي
هغه ستاسو دَپارَ مكروه دِي
١٣ ١٣ له مرغانو نه هغه چه تاسو به ئي مكروه گڼرئ ودِ نه خوړلي
١۴ شي چه هغه مكروه دِي او هغه دا دِي نسر او عقاب او كركس ١۴ او
١٥ شاهين او باښه او دَ هغه له هر قسم نه ١٥ او ټول كارغان او دَ هغه

نه قسم نه ۱۶ او شترمرغ او تخماس او شحف او باز او دَ هغو له قسم نه ۱۶
۱۷ او کونکي او کونترپه او ینشوف ۱۸ او تن شمس او قاث او مردارخور ۱۹ او ۱۷ ۱۸ ۱۹
دینک او انافا او دَ هغه له قسم نه او چرگک او بناپیرک
۲۰ او ټول ثخیدونکي چه وزر لري په څلور بولي ځي هغه ستاسو دَپاره ۲۰
مکروه دي ۲۱ مګر هغه ټول ثخیدونکي چه په څلور بولي ځي او دَ هغو دَ ۲۱
پښو دَپاسه دوه پنډۍ وي چه په هغو باندې په زمکه ټوپونه وهي هغه تاسو
خورئ ۲۲ هغه چه تاسو له هغو نه خوري شئ هغه دا دي ملخ او دَ هغه ۲۲
له قسم نه او سلعام او دَ هغه له قسم نه او حرکول او دَ هغه له قسم
نه او حاجاب او دَ هغه له قسم نه ۲۳ لیکن ټول ثخیدونکي چه وزر لري ۲۳
هغه چه دَ هغو څلور پښې دي هغه ستاسو دَپاره مکروه دي
۲۴ له دغو نه به تاسو ناپاک کیږئ هر چا چه دَ دغو مرداره مسه ۲۴
کړله نو هغه به تر ماښامه پورې ناپاک شي ۲۵ او چه څوک له دغو نه دَ یو ۲۵
مرداره پورته کړي نو هغه دِ خپل زړوکي ووینځي او تر ماښامه پورې به
ناپاک شي
۲۶ او ټول ځاروي چه دَ چا سوه څیرلي وي او پښې ئې څیري نه وي ۲۶
او نه شخوند کوي هغه ستاسو دَپاره ناپاک دي هر څوک چه دوي مسه
کړي هغه به ناپاک شي ۲۷ او هر یو له ټولو ځناورو نه چه په څلور بولي ۲۷
ځي هغه ستاسو دَپاره ناپاک دي هر چا چه له دغو نه دَ یو مرداره مسه
کړله نو هغه به تر ماښامه پورې ناپاک شي ۲۸ او چه څوک له دغو نه دَ یو ۲۸
مرداره پورته کړي نو هغه دِ خپل زړوکي ووینځي او تر ماښامه پورې به ناپاک
شي دا ټول ستاسو دَپاره ناپاک دي
۲۹ او له هغو ثخیدونکو نه چه په زمکه باندې ثخیږي او ستاسو دَپاره ۲۹
مکروه دي هغه دا دي رنده مږه او مږ او سمساره او دَ هغه له قسم نه
۳۰ او اناقاه او خواه او لطاءاه او خومط او تن شامث ۳۱ له ټولو ثخیدونکو ۳۰ ۳۱
دا ستاسو دَپاره ناپاک دي چه څوک دَ دوي مرداره مسه کړي نو هغه به

٣٢ تر نماښامه پورې ناپاک شي ٣٢ او کوم څيز چه له هغه نه مرداره پريوزي
هغه به ناپاک شي که د لرگي لوښي وي يا کپړه وي يا څرمن وي يا
غونډې وي تول لوښي چه کار پر شوي وي نو په اوبو کښ دې واچولې شي
٣٣ او تر نماښامه پورې به ناپاک وي بيا به پاک شي ٣٣ او هر يو د خاورو
لوښي چه په هغه کښ له هغو نه څه پريوزي نو چه څه په هغه کښ دي
٣٤ هغه به ناپاک شي او تاسو به يې مات کړئ ٣٤ تول هغه خوراک چه خوړلې
کيږي چه له هغه نه به کوم اوبه پريوزي ناپاک به شي او تولې د څښلکني
٣٥ چه په هر لوښي کښ وڅښلې شي ناپاک به شي ٣٥ او هر څه چه په
هغه باندې مرداري پريوزي که تنور وي که نغرې وي ونړولې دې شي هغوي
٣٦ ناپاک دي او ستاسو د پاره به ناپاک شي ٣٦ مگر چينه او کوهي چه په کوم
کښ چه جمع اوبه وي نو پاک به وي ليکن چه څوک يې مرداره مسه کړي
٣٧ هغه به ناپاک شي ٣٧ او له هغه مردارو نه چه څه په څه کرلي تخم باندې
٣٨ پريوزي هغه به پاک وي ٣٨ مگر هغه تخم چه په هغه باندې اوبه اچولې
شوې وي که له دغې مرداري نه څه په هغه باندې پريوزي نو هغه به
ستاسو د پاره ناپاک شي
٣٩ ٣٩ او هر کله چه يو له څارويو نه مړ شي چه ستاسو د خوراک
دي نو که چا د هغه مرداره مسح کړله هغه به تر نماښامه پورې ناپاک
٤٠ وي ٤٠ او هر څوک چه له مردارې نه يې وخوړي خپل زروکي دې ووينځي او
تر نماښامه پورې به ناپاک شي او چه څوک يې پورته کړي د هغه مردارو
٤١ هغه دې خپل زروکي ووينځي او تر نماښامه پورې به ناپاک شي ٤١ او تول
ښخيدونکي چه په زمکه باندې ښخيږي هغه مکروه دي تاسو يې مه خورئ
٤٢ ٤٢ او هغه تول چه په گيډه باندې ځي او هغه تول چه په څلور بولې
ځي تر تول هغه چه پښې يې ډيرې وي له هغو تولو ښخيدونکو نه چه
٤٣ په زمکه باندې ښخيږي تاسو هغه مه خورئ ځکه چه هغه مکروه دي ٤٣ او
تاسو په هيڅ ښخيدونکو چه په زمکه باندې ښخيږي خپل ځانونه مه مکروه

کویِٔ او په هغو باندِ خپل ځانونه مه ناپاکویِٔ هسي نه وِي چه په هغو
باندِ ناپاک شئِ ۴۴ ځکه چه زه خداوند ستاسو الله یم تاسو خپل ځانونه ۴۴
مُقَدَّس کړئِ او تاسو قُدوسیان شئِ ځکه چه زه قُدُّوس یم نو خپل
ځانونه په هیڅ ځمځیدونکي څیز باندِ چه په زمکه ځغیږي مه ناپاکویِٔ ۴۵ زه ۴۵
یَهوَه یم هغه چه تاسو مِ دَ مصر له زمکي نه را وویستلئِ دَپارَ دَدي چه
زه ستاسو الله شم نو تاسو قدوسیان شئِ ځکه چه زه قدوس یم-
۴۶ خاروي او مارغه او هر هغه څه چه په اوبو کښ ګرزي او هر هغه ۴۶
څه چه په زمکه باندِ ځغیږي دَ هغو دا شریعت دي ۴۷ دَدي دَپارَ چه تاسو ۴۷
په ناپاکو او په پاکو کښ او په هغه حیوان کښ چه خوړلي کیږي او په
هغه حیوان کښ چه نه شي خوړلي جدائي وکړئِ ◆

## دولسم باب

۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲ بني اسرائیلو سره ۱ ۲
خبري وکړه او ورته ووایه ښځه چه حامله شي او نر هلک راوړي نو هغه
دِ اووه ورځي ناپاکه شِي لکه دَ حیض په ورځو کښ چه ناپاکه وِي ۳ او ۳
په اتمه ورځ دِ هلک سُنَّت کړي شِي ۴ او پس له هغه دِ هغه په خپلو ۴
وینو پاکولو کښ دري دیرش ورځي واروکړِي او هیڅ مقدّس څیز دِ نه
مسه کړِي او نه هغه پوري چه دَ پاکیدلو ورځي نه وِي پوره شوي مَقدِس
ته دِ نه ننوزِي ۵ او که هغه جنئِ راوړِي نو دوه جمعي لکه دَ حیض په ورځو ۵
کښ چه وِي ناپاکه به شِي او پس له هغه دِ هغه په خپلو وینو پاکولو
کښ شپږ شپیته ورځي واروکړِي ۶ او هر کله چه دَ هغي دَ پاکیدلو ورځي ۶
پوره شِي دَ هلک دَپارَ وِي او که دَ جنئِ دَپارَ وِي نو هغه دِ یو کلني ګډوری
دَ سوزلو دَ قربانئِ دَپارَ او دَ کونتري یا د قمرئِ بچي دَ خطا دَ قربانئِ
دَپارَ دَ جماعت دَخیمي دروازي ته کوهین له راولي ۷ هغه دِ ئي دَ ۷
خداوند ذ وړاند قرباني کړي او دَ هغي دَپارَ دِ کفاره ورکړي نو هغه به
له خپلو وینو بهیدلو نه پاکه شِي دا دَ هغي دَپارَ شریعت دي چه هلک

یا جنئ راوړي
۸ ۸ اوکه دَهغي دَ وړي دَ راوستلو لاس نه رسیده نو دوه قمریٔ یا دوه
دَ کونترو بچي دِ واخلي یو دَ سوزلو دَ قربانیٔ دَپارَ او بل دَ خطا دَ قربانیٔ
دَپارَ اوکوهین دِ دَهغي دَپارَ کفاره ورکړي نو هغه به پاکه شي ✣

# دیارلسم باب

۱ ۱ بیا یَهوَه دَ موسیٰ او دَ هارون سره خبري وکړي و ئي ویل چه ـ
۲ ۲ که دَ سړي دَ جُثّي په پوستکي کښ پاړسوب یا پم یا سپین داغ وي او دَ
هغه دَجُثي په پوستکي کښ دَ کوړ دَ داغ په شان وي او هغه دِ هارون
۳ کوهین ته یا یو ته له ځامنو دَ هغه نه چه کوهینان دي راوستلي شي ۳ نو
که کوهین دَ جُثّي دَ پوستکي وهني داغ ته وکتل چه دَ هغي داغ دَ ځاي
ویښته سپین وي او دَ داغ ځاي دَ هغه دَ نوري جُثّي له پوستکي نه ژور
ښکاریده نو دغه دَ کوړ داغ دي نو هر کله چه کوهین دغه وویني نو ور
۴ ته دِ ناپاک ووايي ۴ او که دَده دَ جُثّي په پوستکي کښ دَ داغ ځاي
سپین داغ وه مګر دَده نوره جُثّه له پوستکي نه ژوره نه ښکاریده
او ویښته ئي سپین نه وُو نو کوهین دِ هغه داغي شوي سړي اووه ورځي
۵ بند کړي ۵ په اوومه ورځ دِ ئي کوهین وویني اوګوره که دَ ده په نظر کښ
هغه داغ هم په هغه ځاي ولاړ وي او هغه داغ ئي په پوستکي کښ خور
۶ شوي نه وي نو کوهین دِ ئي دوباره اووه ورځي بند کړي ۶ دوباره ئي په
اوومه ورځ کوهین وویني اوګوره که هغه داغ سپیرچن وه او هغه
داغ ئي په پوستکي کښ خور شوي نه وه نوکوهین دِ هغه ته پاک ووايي دغه
۷ پَمْ دي نو زړوکي دِ ووینځي او پاک دِ شي ۷ لیکن که هغه پَم پس له ښکاره
کولو ئي کوهین ته دَ پاکئ دَپاره په پوستکي کښ خور شي نو دوباره دِ کوهین
۸ ته وراندِ کړلي شي ۸ کوهین به ئي وویني اوګوره که پَم په پوستکي کښ
خور شوي دي نو کوهین دِ هغه ته ناپاک ووايي دغه کوړ دي
۹ ۹ که په سړي کښ دَ کوړ داغ وي نو هغه دِ کوهین ته راوستلي

نبي ۱۰ کوهين به ئ وويني او ګوري که په پوستکي کښ سپين پارسوب وِي ۱۰
او ويښته ئ سپين کړي وِي او په هغه پارسوب کښ دَ ژونديُ غوښي نښه وِي
۱۱ نو دغه دَده دَ جُثّي په پوستکي کښ زوړ کوړ دي نو کوهين دِ ور ته ۱۱
ناپاک ووايي او نه به ئ بند وِي ځکه چه هغه ناپاک دي ۱۲ او که کوړئ ۱۲
په پوستکي کښ خور شوي وِي او ټول پوستکي دَ هغه چه داغ لري له سرَ
تر پښو پوري څومره چه پرِ دَ کوهين نظر لګيږي کوړ پټ کړي وِي ۱۳ کوهين ۱۳
به ئ ووينِي او ګوره که ټول تن دَ هغه کوړ پټ کړي وِي - نو هغه ته چه
داغي شوي وِي پاک به وائِ چه ټول سپين شوي دي - نو دغه پاک دي -
ليکن کومه ورځ چه په کښ ژونديُ غوښه وليدلي شِي نو ناپاک به شِي - ۱۴
۱۵ نو کوهين چه ژونديُ غوښه ووينِي نو ناپاک دِ ور ته ووايي ځکه چه ۱۵
ژونديُ غوښه ناپاکه ده - نو هغه کوړ دي ۱۶ نو که هغه ژونديُ غوښه بيا ۱۶
را وګرزيدله او سپينه شوله نو کوهين له دِ راشِي ۱۷ کوهين به ئ ووينِي ۱۷
او ګوره که داغ ئ سپين شوي وِي نو کوهين دِ هغه داغي شوي ته پاک
ووايي ځکه چه هغه پاک دي
۱۸ او که دَ جُثي په پوستکي باندِ ننکئ وِي او جوړ شِي ۱۹ او دَ ۱۸ ۱۹
ننکو په ځاي کښ سپين پارسوب يا ځليدونکي سپين داغ مائل سوروالي
ته وِي نو کوهين ته دِ وراندِ کړي شِي ۲۰ کوهين به ئ ووينِي او ګوره که ۲۰
له پوستکي نه ژور ښکاريده او ويښته ئ سپين شوِي وُو نو کوهين دِ
ور ته ناپاک ووايي ځکه چه دغه دَ کوړ داغ دي له ننکو نه پيدا شوي دي -
۲۱ کوهين به ئ ووينِي او ګوره که په هغه باندِ سپين ويښته نشته او هغه ۲۱
له پوستکي نه ژور نه دي او سپيرچن دي نو کوهين دِ هغه تر اووه وُ ورځو
پوري بند کړي ۲۲ نو که هغه په پوستکي کښ خور شه نو کوهين دِ هغه ۲۲
ته ناپاک ووايي دغه داغ دي ۲۳ او که هغه سپين داغ په ځاي ولاړ وه ۲۳
او خور شوي نه وه نو دَ ننکئ تاپي دي کوهين دِ ور ته پاک ووايي
۲۴ او که دَ جُثّي په پوستکي کښ سَوی وِي او دَ شوي پرهار سپين ۲۴

۲۵ خلیدونکي وِي په رنگ کښ سور سپین یا سپین وِي ۲۵ اوچه کوهین
پرِ باندِ ووینِي نوگوره که په هغه سپین داغ کښ ویښته سپین شوي دِي
او هغه ځاي له نور پوستکِي نه ژور ښکاریده نودغه کوړ دي چه له
سیځلو نه پیدا شوي دي نو کوهین دِ ورته ناپاک ووایِي ځکه چه دغه دَ
۲۶ کوړ داغ دي ۲۶ لیکن که کوهین ئِ ووینِي اوگوره که په هغه سپین داغ
کښ سپین ویښته نشته او له پوستکِي نه ژور نه دي او سپیرچن دي
۲۷ نو کوهین دِ ئِي اووه ورځي بندکړِي ۲۷ بیا دِ ئِ کوهین په اوومه ورځ وگورِي
نوکه په پوستکِي کښ خور شوي وه نو کوهین دِ ورته ناپاک ووایِي ځکه چه
۲۸ دغه دَکوړ داغ دي ۲۸ لیکن که سپین داغ ولاړ وِي او په پوستکِي کښ خور
شوي نه وِي او سپیرچن وِي نو دغه دَ سوِي پاړسوب دي نو کوهین دِ ورته
پاک ووایِي ځکه چه دغه دَ سوِي نښه ده
۲۹ ۳۰ ۲۹ اوکه دَ سړي یادَ ښځي په سر یا په ږیره کښ داغ وه ۳۰ نوکوهین
دِ هغه داغ وگورِي اوگوره که دَده په نظر کښ له پوستکِي نه ژور وِي
او ویښته په کښ نرِي زیړ وِي نو کوهین دِ ورته ناپاک ووایِي ځکه چه دغه
۳۱ ساړِي دي دَ سر یادَ ږیري کوړ دي ۳۱ اوکه کوهین دَ هغه دَ ساړِي داغ
ووینِي اوگوره که هغه له پوستکِي نه ژور نه دي خو په هغه باندِ تور ویښته
۳۲ نشته نو کوهین دِ هغه دَ ساړِي داغِي اووه ورځي بندکړِي ۳۲ اوکوهین دِ
په اوومه ورځ داغ وگورِي که ساړِي خور شوي نه وِي او په هغه باندِ ځه
زیړ ویښته نه وِي او ساړِي په لیدلو کښ له پوستکِي نه ژور نه ښکاریږِي
۳۳ ۳۳ نو هغه دِ وخریلِي شِي لیکن ساړِي دِ و نه خریِي اوکوهین دِ هغه دَ ساړِي
۳۴ داغِي دِ نورِي اووه ورځي بنده کړِي ۳۴ بیا په اوومه ورځ کوهین به ئِ ساړِي
ووینِي اوگوره که ساړِي په پوستکِي کښ خور شوي نه وِي او له پوستکِي نه
ژور نه ښکاریده نو کوهین دِ ورته پاک ووایِي او خپل زړوکِي دِ ووینځِي
۳۵ نو پاک به شِي ۳۵ لیکن که هغه ساړِي په پوستکِي کښ پس له پاکیدلو خور
۳۶ شوي وه ۳۶ نو کوهین به ئِ ووینِي چه په پوستکِي کښ ساړِي خور شوی دي

نو کوهین دِ زیرِ ویښته نه لټوِي هغه ناپاک دي ٣٧ لیکن که دَده په ٣٧
نظرِ کښ هغه دَ ساړي ولاړ وِي او ویښته په کښ تور وُو نو ساړي جوړ
شه هغه پاک دي نو کوهین دِ هغه ته پاک ووایِي
٣٨ اوکه دَ سړي یا دَ ښځي دَجُثّي په پوستکِي کښ سپین داغونه ٣٨
ځلیدونکي وِي ٣٩ او کوهین به ئِ ووینِي نو ګوره که دَ هغو دَ جُثّي په ٣٩
پوستکِي کښ هغه ځلیدونکي داغونه سپیرچن وِي نو دغه سپین ښُهَق دي
چه له پوستکِي نه وتلي دي دغه پاک دي
٤٠ او که دَ سړي دَ سر ویښته پریوتلي وِي نو هغه ګنجي دي هغه ٤٠
پاک دي ٤١ او که دَ هغه دَ هغه دَ سر ویښته دَ وچولي طرف ته ختلي وِي ٤١
هغه دَ وړاندِ ګنجي دي او هغه پاک دي ٤٢ ولي که په ګنجي یا دَ وړاندِ ګنجي ٤٢
کښ سپین داغ سوربخَن وِي نو هغه کوړ دَ ګنجي یا دَ وړاندِ ګنجي دي -
٤٣ کوهین به ئِ ووینِي ګوره که هغه پاړسوب دَ داغ دَ ګنجي یا دَ وړاندِ ٤٣
ګنجي سپین یا سُوربخَن وِي لکه چه کوړ دَ جُثّي په پوستکِي کښ ښکارېږي
٤٤ نو هغه کوړي سړي دي هغه ناپاک دي کوهین دِ هغه ته بالکل ٤٤
ناپاک ووایِي دَ هغه داغ دَ هغه په سر باندِ دي ٤٥ او کوړي چه په کښ ٤٥
داغ وِي دَ هغه زړوکِي دِ څیري کړي شِي او دَ هغه سر دِ سرتور کړي
شِي او دَ هغه شونډي دِ پټي کړي شِي او نغري دِ ووهي چه ناپاک
ناپاک ٤٦ ټولي ورځي چه دا داغ په هغه کښ وِي هغه به ناپاک وِي هغه ٤٦
ناپاک دي هغه به یواځي اوسي دَ هغه استوګنه به له ډېري نه بهر وِي
او هغه زړوکِي چه دَ کوړ داغ په کښ وِي نو که زړوکِي دَ وړیِ وِي او ٤٧
که زړوکِي دَ سنړو وِي ٤٨ په تنَنتَهٔ کښ وِي یا په بُودَه کښ وِي له سنړو ٤٨
وِي یا له وړیِ وِي که په پوستکِي وِي یا په هرڅه کښ چه له پوستکِي نه
جوړ کړي شوي وِي ٤٩ او هغه داغ شِین یا سُوربخن وِي په زړوکِي کښ وِي ٤٩
یا په پوستکِي کښ وِي په تنَنتَه کښ وِي یا په بوده کښ وِي یا په هر
شي کښ چه له پوستکِي نه جوړ کړي شوي وِي نو دغه دَ کوړ داغ دي دغه

۵۰ دِ کوهین ته وړاند کړي شي. ۵۰ کوهین دِ هغه داغ وګوري او هغه داغي
۵۱ شوي دِ اووه ورځي پټ کړي ۵۱ او په اوومه ورځ دِ هغه داغ وګوري که
هغه داغ په زړوکي کښ خور شوي وه په تَنَسُتَه کښ یا په بُوده کښ یا
په پوستکي کښ یا په هرځیز کښ چه له پوستکي نه جوړ کړي شوي وِي
۵۲ نو دغه داغ سخت دَ کوړ دي او هغه ناپاک دي ۵۲ نو هغه زړوکي دِ
وسیزي که تَنَسُتَه وِي که بُوده وِي دَ وړي وِي که د سنړو وِي یا هر شي
چه له پوستکي نه وِي چه په کښ داغ وِي ځکه چه سخت کوړ دي هغه
۵۳ دِ په اور وسیزلي شي ۵۳ که کوهین ئي ووینې او ګوره که هغه داغ په زړوکي
کښ په تَنَسُتَه کښ یا په بُوده کښ یا دَ پوستکي په هر شئ کښ خور
۵۴ شوي نه وِي ۵۴ نو کوهین دِ حکم وکړي چه دغه ځیز چه په کښ دغه داغ
۵۵ دي ودِ وینځي او تر اووهٔ ورځو پوري دِ بند کړي ۵۵ بیا که پس له وینځلو
نه کوهین هغه داغ ووینې او ګوره که هغه داغ ځپل رنګ نه دي بدل کړي
او نه هغه داغ خور شوي دي نو دغه ناپاک دي په اور دِ ئي وسیزي ځکه
۵۶ چه هغه مضر دي که په مخ کښ وِي که په استر کښ وِي ۵۶ او که کوهین
ئي ووینې او ګوره که هغه داغ پس له وینځلو نه سپیرچن دي نو هغه
۵۷ دِ له هغه زړوکي یا له پوستکي له تنستي نه یا له بودي نه وشلوي ۵۷ او که
هغه په زړوکي په تَنَسُتَه کښ یا په بُوده کښ یا دَ پوستکي په څه شي
کښ برابر ښکاره شي نو دغه خوریدونکي دي چه په کښ داغ وِي دغه دِ په
۵۸ اور وسیزي ۵۸ او هغه زړوکي تَنَسُتَه یا بوده یا هرڅه دَ پوستکي شي
چه ته ووینځي او هغه داغ ترِ ورک شه نو دوبارَ دِ ووینځلي شي نو هغه
۵۹ به پاک شي ۵۹ دا شریعت دي دَ کوړي دَ داغ دَپارَ زړوکي دَ وړئ یا دَ سنړ که
تَنَسُتَه که بُوده یا دَ هرشي دَ پوستکي دَ هغه دَ پاکئ دَ ویلو دَپارَ یا دَ
ناپاکئ دَ ویلو دَپارَ ❊

## څوارلسم باب

۱ ۲ ۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲ دَ کوړ دَپارَ په

هغه ورځ چه دي پاکولي ښي دا شريعت دي چه کوهين له دِ راوستلي
شي ۲ او کوهين دِ له ډيري نه بهر ووځي کوهين به يُ وويني او کوره ۳
که هغه دَ کوړ داغ له کوړي نه جوړ شوي وه ۳ نو کوهين دِ حکم وکړي ۴
چه دَ پاکيدونکي دَپارَ دوه ژونديُ پاکي چينجړي او دَ ديار لرګي او قرمز
او سپيلني دِ واخستلي شي ۵ او کوهين دِ حکم وکړي چه له هغو چينجړو ۵
نه دِ يوه دَ خاورو په لوښي کښ دَ روانو اوبو دَپاسَ حلاله کړي ۶ او هغه ۶
ژونديُ چينجړه اودَ ديار لرګي او دَ قرمز اودَ سپيلني سره واخلي اودغه
دِ دَ هغي ژونديُ چينجړي سره دَ هغي چينجړي په وينو کښ چه په روانو
اوبو باندِ حلاله کړي شوي وَه غوټه کړي ۷ او په هغه چه له کوړه نه پاک ۷
کړي شي او وه واره چڼړکاوُ کړي نو هغه ته به پاک ووايي بيا هغه ژونديُ
چينجړه دِ دَ صحرا په طرف پريږدي ۸ نو هغه پاکيدونکي دِ خپل زړوکي ۸
ووينځي او ټول ويښته دِ خپل وخريي او په اوبو دِ ولامبي نو پاک به شي
بيا دِ ډيري ته ننوځي ليکن اووه ورځي دِ له خپلي خيمي نه بهر اوسي
۹ او په اوومه ورځ دِ خپل ټول ويښته دَ سر اودَ ږيري او دَ وروځو ۹
او ټول ويښته دِ خپل وخريي او زړوکي دِ ووينځي اوخپل ځان دِ هم
په اوبو ووينځي نو پاک به شي ۱۰ او په اتمه ورځ دوه روغ ګډوري او يوه ۱۰
روغه ګډه دَ يوکال او دري لسمي حصي دَ اِيفا دَ ميده اوړو په تيلو کښ
اغږلي دَ هديي دَ قربانيُ دَپارَ او نيم سير تيل دِ راوړي ۱۱ نو هغه پاکوونکي ۱۱
کوهين دِ هديه پاکيدونکي سري دَ دغو څيزونو سره دَ خداوند دَ وړاندِ دَ
جماعت دَخيمي دروازي ځنځه حاضر کړي ۱۲ او کوهين دِ يو له ګډورو نه ۱۲
دَګناه دَ قربانيُ دَپارَ او نيم سير تيل او هغه دِ دَ خوځولو دَ قرباني دَپارَ
دَ خداوند دَ وړاندِ وخوځوي ۱۳ او هغه ګډوري دِ په هغه ځاي کښ چه ۱۳
چرته دَ خطا قرباني اودَ سوزلو قرباني حلالولي شي دَ مقدس په مکان
کښ دِ حلال کړي ځکه چه دَ خطا دَ قربانيُ په شان دا دَګناه قرباني هم دَ
کوهين دَه دا مقدسه له مقدسو دَه ۱۴ اوکوهين دِ دَګناه دَ قربانيُ ۱۴

له وينې نه څه واخلي او د هغه پاکيدونکي د ښي غوږ په پوسه کي او د
۱۵ ښي لاس په غټه گوته دِ پوري کړي ۱۵ او کوهين دِ له هغه نيم سير تيلو
۱۶ نه څه واخلي او په خپل کيڼ ورغوي کښ دِ واړوي ۱۶ او کوهين دِ په
هغه تيلو کښ چه د ده په کيڼ ورغوي کښ دي د خپل ښي لاس گوته غوټه
کړي او څه دِ له هغه تيلو نه په خپله گوته اووه ځل د خداوند د وړاندِ
۱۷ چنړکاؤ کړي ۱۷ او هغه باقي تيل چه د هغه په ورغوي کښ دي هغه دِ کوهين
د هغه پاکيدونکي سري د ښي غوږ په پوسکي او د هغه د ښي لاس په
غټه گوته او د ښيِ پښي په غټه گوته د گناه د قرباني د وينو د پاسه پوري
۱۸ کړي ۱۸ او هغه باقي تيل چه د کوهين په ورغوي کښ دي هغه دِ د هغه
پاکيدونکي سري په سر پوري کړي او د خداوند د وړاندِ دِ د هغه د پاره کفاره
۱۹ ورکړي ۱۹ بيا کوهين دِ د خطا قرباني وکړي او هغه چه له خپلي ناپاکئ
پاکيدونکي دي د هغه د پاره دِ کفاره ورکړي پس له هغه دِ د سوزلو قرباني
۲۰ حلاله کړي ۲۰ او کوهين دِ سوزلو قرباني او د هديي قرباني په مذبح باندِ
وخيژوي او کوهين دِ د هغه د پاره کفاره ورکړي نو پاک به شي
۲۱ ۲۱ ولي که محتاج وي او لاس ئي نه رسيږي نو هغه دِ د گناه د
قرباني د خوځولو د پاره يو گډوري واخلي چه هغه د هغه د پاره کفاره ورکړي
او يو لسمه حصه د ايفا د ميده اوړو په تيلو کښ اغږلي د هديي د قربانئ
۲۲ د پاره او نيم سير تيل ۲۲ او دوه قمرئ او دوه د کونترو بچي چه څنگه د ده لاس
۲۳ رسيږي يوه به د خطا قرباني شي او يوه به د سوزلو قرباني شي ۲۳ او دغه
دِ په اتمه ورځ د ځان د پاکولو د پاره د جماعت د خيمي دروازي ته د خداوند
۲۴ د وړاندِ کوهين له راوړي ۲۴ او کوهين دِ د گناه د قرباني گډوري او نيم سير
تيل واخلي او کوهين دِ دغه د خداوند د وړاندِ د خوځولو د قربانئ د پاره وخوځوي
۲۵ ۲۵ بيا هغه د گناه د قربانئ گډوري دِ حلال کړي او کوهين دِ د گناه د قربانئ
له وينو څه واخلي او د هغه پاکيدونکي سري د ښي غوږ په پوسه کي او د
۲۶ ښي لاس په غټه گوته او د ښيِ پښي په غټه گوته دِ پوري کړي ۲۶ او له

هغه تیلو نه دِ څه په خپل کینړ ورغوِي کښں واړوِي ۲۷ او کوهین دِ ۲۷
له هغه تیلو نه چه دَده په کینړ ورغوِي کښں دِي څه په ښئِ گوته دَ
خداوند دَ وړاندِ اووه ځلَ څڅکاوُ کړِي ۲۸ او کوهین دِ له هغه تیلو نه چه ۲۸
دَده په ورغوِي کښں دِي دَ هغه پاکیدونکِي سړِي دَ ښي غوږ په پوسه کِئ
او هغه دَ ښي لاس په غټه گوته اودَ ښئِ پښي په غټه گوته دَ گناه دَ
قربانیِٔ دَ وینِي په ځاي دِ پوري کړِي ۲۹ او کوهین دِ هغه باقِي تیل چه دَ ۲۹
هغه په ورغوِي کښں دِي دَ هغه پاکیدونکِي سړِي په سر باندِ پوري کړِي
چه دَ هغه دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ کفاره ورکړِي ۳۰ بیا دِ یوه له دوهُ قمرو ۳۰
یا دَ کونترو له دوهُ بچو هر څه چه دَده لاس رسیږِي هدیه دِ ورکړِي ـ
۳۱ هر څه چه دَده لاس رسیږِي یوه دَ خطا دَ قربانیِٔ دَپارَ او بله دَ سوزلو ۳۱
دَ قربانیِٔ دَپارَ دَ هدیِي دَ قربانیِٔ سره او کوهین دِ دَ هغه پاکیدونکِي سړِي
دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ کفاره ورکړِي ۳۲ هغه چه په کښں دَ کوړِي داغ ۳۲
وِي او دَ هغه دَ پاکیدلو دَپارَ لاس ئِي نه رسیږِي دا شریعت دي
۳۳ بیا خداوند دَ موسیٰ او دَ هارون سره خبري وکړِي و ئِي ویل ۳۳
چه ۳۴ هر کله چه تاسو دَ کنعان په زمکه کښں داخل شئِ هغه چه زه ۳۴
ئِي تاسو له دَ قبضي دَپارَ درکوم او دَ هغي زمکِي په کور کښں چه ستاسو
قبضه ده دَ کوړ داغ واچوم ۳۵ نو دَ دغه کور خاوند دِ راشِي او کوهِین ۳۵
دِ خبر کړِي ور ته دِ ووايِ چه ما ته داسي معلومیږِي چه په دي کور
کښں څه داغ دي ۳۶ نو کوهین دِ حکم وکړِي چه مخکښي دَ کوهین له راتلو ۳۶
نه دَ داغ دُ لیدلو دَپارَ دوي دِ هغه کور خالِي کړِي چه ناپاک نه شِي
ټول هغه څه چه په کور کښں دِي پس له هغه دِ کوهین دَ کور لیدلو
له راشِي ۳۷ او چه هغه به ئِي داغ ووینِي او گوره که هغه داغ دَ هغه ۳۷
کور په دیوالونو باندِ کرخي وِي چه شینِي یا سوربخني وِي او په کتلو کښں
له دیوال ژوري وِي ۳۸ نو کوهین دِ له کورَ بهر دَ کور دروازي ته ووځِي ۳۸
او کور دِ تر اووهُ ورځو پوري بند کړِي ۳۹ نو که کوهین په اوومه ورځ ۳۹

او وئې وينې او گوره که هغه داغ دَ کور په ديوالونو باندِ خور شوي دي
۴۰ ۴۰ نو کوهين دِ حکم وکړي چه هغه کاڼي چه دغه داغ په کښ دي و دِ
۴۱ باسي او بهر له ښهرَ دِ ئې په ناپاک ځاي کښ وغورزوي ۴۱ بيا دِ هغه
کور د ننه ځلور واړه طرفَ وتوږي او دوي دِ هغه توږلي شوي خاوره بهر
۴۲ له ښهرَ په ناپاک ځاي کښ وغورزوي ۴۲ او دوي دِ نور کاڼي واخلي او دَ
هغه کاڼو په ځاي دِ ئې ولګوي او نوره خاوره دِ واخلي او هغه کور دِ پړليو
۴۳ کړي ۴۳ او که داغ پس له هغه چه کاڼي ئې وکښلي شول او هغه کور
۴۴ وتوږلي شه او ليو کړي شه بيا ښکاره شِي او په کور کښ خور شِي ۴۴ نو
که کوهين راشي او وئې وينې او گوره که داغ په کور کښ خور شوي وِي
۴۵ نو دغه به په دغه کور کښ سخت کوړوِي دغه ناپاک دي ۴۵ نو هغه دِ هغه
کور ونړوِي او دَ هغه کاڼي او دَ هغه لرګي او ټوله خاوره دَ کور دِ بهر له
۴۶ ښهرَ ناپاک ځاي ته يوسِي ۴۶ نو که څوک دَ بنديدلو په ورځو کښ دغه کور
۴۷ ته ننوځي نو هغه به دَ ماښامَ پوري ناپاک وِي ۴۷ او چه څوک په دغه کور
کښ اوده شِي نو خپل زروکي دِ وونځي او چه څوک په دغه کور کښ څه
۴۸ وخوري نو خپل زروکي دِ وونځي ۴۸ ليکن که پس له هغه چه کور ليو کړي
شوي وه کوهين راشي او وئې وينې او گوره که هغه داغ په کور کښ نه دي
خور شوي نو کوهين دِ هغه کور ته پاک ووايي ځکه چه هغه داغ جوړ شوي
۴۹ دي ۴۹ نو دَ دغه کور دَ پاکئ دَپارَ دِ دوه چيچړي او دَ ديار لرګي او قرمز
۵۰ او سپيلني واخلي ۵۰ او له هغه چيچړو نه دِ يوه دَ خاورو په يو لوښي کښ
۵۱ دَ روانو اوبو دَ پاسَ حلاله کړي ۵۱ بيا هغه دَ ديار لرګي او سپيلني او قرمز او
هغه ژوندئ چيچړه دِ واخلي او دَ هغې چيچړي په وينو کښ چه حلاله کړي
شوي دَه او په هغو روانو اوبو کښ دِ غوټه کړي او هغه کور دِ اووه واره
۵۲ چړکاؤ کړي ۵۲ او دَ چيچړي دَ وينو سره او دَ روانو اوبو سره او دَ ژوندئ
چيچړي سره او دَ ديار دَ لرګي سره او دَ سپيلني سره او دَ قرمز سره دِ
۵۳ هغه کور پاک کړي ۵۳ او هغه ژوندئ چيچړه دِ له ښهر بهر صحرا ته

پرېږدي او دَ هغه كور دَپارَ دِ كفاره وركړي نو هغه به پاك شي
۵۴ ۵۴ دَ هر قسم دَ كوړ داغ او دَ بټول سارِي دَپارَ هم دا شريعت دي۔
۵۵ ۵۵ او دَ زړوكو دَ كوړ دَپارَ او دَ كور دَپارَ ۵۶ او دَ پارسوب دَپارَ او دَ پم دَپارَ ۵۶
۵۷ او دَ سپين داغ دَپارَ ۵۷ دَ ناپاكۍ دَ ورځي او دَ پاكۍ دَ ورځي دَ ښولو دَپارَ
دا دَ كوړ شريعت دي *

# پنځلسم باب

۱ ۲ ۱ بيا خداوند دَ موسیٰ او دَ هارون سره خبري وكړي و ئي ويل چه ۲ بني اسرائيلو
سره خبري وكړئ او ورته ووايئ چه كه دچا سرِي له تن نه بهيدل
۳ وِي نو هغه دَ بهيدلو په سبب ناپاك دي ۳ او په بهيدلو كښ به دَ هغه
ناپاكي دا وِي چه كه دَ هغه دَ تن سره بهيدل وِي يا دَ هغه تن له بهيدلو
۴ نه بند وِي نو دغه دَ هغه ناپاكي ده ۴ هره بيچاونړه چه دَ هغي دَپاسَ دَ
بهيدلو سري څملي هغه به ناپاك شي او هر يو ځيز چه په هغه كښيني ناپاك
۵ به شي ۵ او هر څوك چه دَ هغه بيچاونړه مسه كړي خپل زړوكي دَ وينځي
۶ او په اوبو دِ ولانبي او تر نمابښام به ناپاك وِي ۶ او هر څوك چه په هغه
ځيز كښيني چه په هغه باند دغه دَ بهيدلو سري ناست وِي هغه دِ خپل
۷ زړوكي ووينځي او په اوبو دِ ولانبي او تر نمابښام به ناپاك وِي ۷ او هر څوك
چه دَ هغه تن مسه كړي چه دَ چا بهيدل وِي نو هغه دِ خپل زړوكي ووينځي
۸ او په اوبو دِ ولانبي او تر نمابښامَ به ناپاك وِي ۸ او كه دَ بهيدلو سري
په چا پاك سرِي لاري تُوكړي نو هغه سرِي دِ خپل زړوكي ووينځي او
۹ په اوبو دِ ولانبي او تر نمابښامَ به ناپاك وِي ۹ او هره كاټي چه پرِ باندِ دَ بهيدلو
۱۰ سرِي سور شي ناپاكه به شي ۱۰ او هر څوك چه هغه ځيز مسه كړي چه دَ
هغه لاندِ وه نو تر نمابښامَ به ناپاك وِي او چه څوك هغه ځيزونه پورته كړي
هغه دِ خپل زړوكي ووينځي او په اوبو دِ ولانبي او تر نمابښامَ به ناپاك وِي
۱۱ ۱۱ او هر څوك چه بهيدلو سرِي مسه كړي او په اوبو سره ئي خپل لاس وينځلي
نه وِي نو هغه دِ خپل زړوكي ووينځي او په اوبو دِ ولانبي او تر نمابښامَ به

۱۲ ناپاک وِي ۱۲ او دغه ذ بهيدلو سړي که دَ خاورو لوښي مسه کړي نو هغه
۱۳ دِ مات کړي شِي او که دَ لرګِي لوښي وِي نو په اوبو دِ وويځلي شِي ۱۳ او
هر کله چه هغه دَ بهيدلو سړي له بهيدلو نه پاک شِي نو اووه ورځي
دِ دَ خپل ځان دَ پاکوالي دَپارَ وشمارِي او خپل زروکِي دِ وويځِي او خپل
۱۴ ځان دِ په روانو اوبو کښ ولمبوِي نو پاک به شِي ۱۴ او په اتمه ورځ دِ دَ
خپل ځان دَپارَ دوه قمرئِ يا دوه دَ کونترو بچِي واخلِي او دَ خداوند دَ وړاندِ
۱۵ دَ جماعت دَ خيمي دروازي ته دِ راشِي او کوهين له دِ ئِي ورکړِي ۱۵ او کوهين
دِ هغه نږدي کړي يوه دَ خطا دَ قربانئِ دَپارَ او بله دَ سوزلو دَ قربانئِ دَپارَ
او کوهين دِ دَ هغه دَ بهيدلو دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ دَ هغه له بهيدلو
نه کفاره ورکړِي

۱۶ ۱۶ او که دَ چا سړِي مني ووځي نو هغه دِ ټول ځان په اوبو وويځِي
۱۷ او تر نماښامَ به ناپاک وِي ۱۷ او په هر زروکِي يا پوستکِي چه مني پريوزي
۱۸ نو هغه دِ په اوبو وويځلي شِي او تر نماښامَ به ناپاک وِي ۱۸ او هغه ښځه
چه سړي ورسره کوروالي وکړِي نو په اوبو دِ دواړه ولامبِي او تر نماښامَ به
دواړه ناپاک وِي

۱۹ ۱۹ او که دَ ښځي بهيدل وِي او بهيدل ئِي له تنَ دَ وينه وِي نو تر
اووهٔ ورځو دِ هغه پليته وِي او هر څوک چه دغه مسه کړِي هغه به تر
۲۰ نماښامَ ناپاک وِي ۲۰ او هر څيز چه دا پرِ باندِ په خپلِي پليتئِ کښ څملِي هغه
۲۱ به ناپاک شِي او په هر څيز باندِ چه هغه کښيني هغه به ناپاک شِي ۲۱ او چه
څوک دَ هغي بيچاونړه مسه کړِي هغه دِ خپل زروکِي وويځِي او په اوبو دِ
۲۲ ولامبِي او تر نماښامَ به ناپاک وِي ۲۲ او چه څوک هغه څيز مسه کړِي چه
پرِ هغه ناسته وِي نو خپل زروکِي دِ وويځِي او په اوبو دِ ولامبِي او تر نماښامَ
۲۳ به ناپاک وِي ۲۳ او چه څوک هغه بيچاونړه يا هغه څيز چه دا پرِ ناسته
۲۴ وِي مسه کړِي نو هغه به تر نماښامَ ناپاک وِي ۲۴ او که ورسره څوک
څملاسْت نو دَ هغي پليتي په هغه باندِ کيږِي اووه ورځي په هغه ناپاک وِي

او هره بچاونړه چه په هغې دغه سړې خَملي ناپاکه به شي
۲۵ ۲۵ او چه دَ ښځې دَ وينې بهيدل دَ ډيرو ورځو پورې وِي او دَ خپلې
پليتيُ په وقت کښ نه وِي يا بهيدل يُې دَ خپلې پليتيُ له وقت نه زيات وِي
نو ټولې ورځې دَ بهيدلو دَ ناپاکيُ دَ هغې په شان دَ ورځو دَ پليتيُ به وِي
۲۶ هغه ناپاکه ده ۲۶ هره بچاونړه چه دا پرِ خَملي په ټولو ورځو دَدې دَ بهيدلو
کښ هغه دَدې دَ پليتي دَ بچاونړي په شان ده او هر هغه څيزچه دا په
۲۷ هغه باندِ کښيني هغه دَدې دَ پليتيُ دَ ناپاکيُ په شان ناپاک به وِي ۲۷ او
هر څوک چه دغه څيزونه مسه کړي هغه به ناپاک شي نو زيروکي دِ وينځي
۲۸ اوبه اوبو دِ ولامبي او تر ماښامه به ناپاک وِي ۲۸ او چه له بهيدلو نه
پاکه شي نو دَ ځان دَپارَ دِ اووه ورځې وشماري پس له هغه به پاکه شي
۲۹ ۲۹ او په اتمه ورځ دِ دَ ځان دَپارَ دوه قمريُ يا دوه دَ کونترو بچي واخلي او
۳۰ هغه دوارِه دِ دَجماعت دَ خيمي دروازې ته کوهين له راوړي ۳۰ نو کوهين دِ
يوه دَ خطا دَ قربانيُ دَپارَ او بله دَ سوزلو دَ قربانيُ دَپارَ قرباني کړي او کوهين
دِ دَدې دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ دَدې دَ ناپاکيُ له بهيدلو کفاره ورکړي
۳۱ ۳۱ نو تاسو بني اسرائيل دَ دوي له ناپاکيُ نه په دِده کړيُ دَدې دَپارَ
چه دوي په خپله ناپاکيُ کښ مړه نه شي څکه چه ځما هغه مسکن چه دَ
دوي په مينځ کښ دي هغه ناپاک کړي
۳۲ ۳۲ دَ هغه دَپارَ چه دَ چا بهيدل وِي او دَ هغه دَپارَ چه دَ چا مني
۳۳ ووزي او دَ هغه په سبب ناپاک شي ۳۳ او دَ هغې دَپارَ چه په خپله
پليتي کښ پليته ده او دَ هغه سړي يا دَ ښځې دَپارَ چه بهيدل يُې وِي
او دَ هغه سړي دَپارَ چه دَ ناپاکې ښځې سره خَملي دا شريعت دي *

## شپاړسم باب

۱ ۱ او خداوند پس له مرګ دَ هارون دَ دوارِو ځامنو نه دَ موسىٰ سره خبرې
۲ وکړې په هغه وقت کښ چه هغوي خداوند ته نزدې شول او مړه شول ۲ نو
خداوند موسىٰ ته ووئيل چه خپل ورور هارون ته ووايه چه هر وقت دِ په مقدس

مکان کښې دننه په پرده کښې دَ کفاره ګاه دَ وړاندِ چه هغه په صندوق
باندِ دي ننه ننوځي چه مړ نه شي ځکه چه زه په وريځ کښې به کفاره ګاه
۳ باندِ ښکاره کيږم ۳ او هارون دِ پاک مکان ته په دا شان ننوځي چه دَ خطا
۴ دَ قربانۍ دَ پارَ يو سخوندر او دَ سوزلو دَ قربانۍ دَ پارَ يو مږ دِ راوړي ۴ او دَ
سنړو پاک قميص دِ واغوندي او دَ ده په تن دِ دَ سنړو پرتوګ وي او دَ
سنړو په کمربند دِ خپله ملا وتړي او دَ سنړو پګړۍ دِ په سر کړي دا پاک
۵ زروکي دي او هغه دِ خپل ځان په اوبو ووينځي او دغه دِ واغوندي ۵ او دَ
بني اسرائيلو له جماعت نه دِ دوه چيلۍ دَ خطا دَ قربانۍ دَ پارَ او يو مږ دَ
۶ سوزلو دَ قربانۍ دَ پارَ واخلي ۶ او هارون دِ هغه دَ خطا دَ قربانۍ سخوندر چه
دَ ده دَ پارَ دي راوړي او دَ خپل ځان دَ پارَ او دَ خپل کور دَ پارَ دِ کفاره ورکړي
۷ ۷ بيا هغه دواړه چيلي دِ واخلي او دَ جماعت دَ خيمې دروازې ځنګه دَ خداوند
۸ دَ وړاندِ دِ حاضر کړي ۸ او هارون دِ په هغه دواړو چيلو باندِ هسک
۹ واچوي يوه هسک دَ خداوند دَ پارَ او بل هسک دَ عزازيل دَ پارَ ۹ او هارون دِ
هغه چيلي راولي چه پرِ باندِ دَ خداوند دَ پارَ هسک وختلي او هغه دِ دَ
۱۰ خطا دَ قربانۍ دَ پارَ قرباني کړي ۱۰ او هغه چيلي چه په هغه باندِ دَ عزازيل
دَ پارَ هسک وختلي هغه دِ دَ خداوند دَ وړاندِ ژوندي ودروي چه دَ ده دَ پارَ
۱۱ کفاره ورکړي او دَ عزازيل دَ پارَ دِ ئې پريږدي صحرا ته ۱۱ او هارون دِ دَ خطا
دَ قربانۍ سخوندر چه دَ ده دَ پارَ دي وړاندِ کړي او دَ خپل ځان دَ پارَ او دَ
خپل کور دَ پارَ دِ کفاره ورکړي او هغه دَ خطا دَ قربانۍ سخوندر چه دَ ده
۱۲ دَ پارَ دي هغه دِ حلال کړي ۱۲ او مجمر دِ دَ هغه اور له سکروټو نه ډک
کړي چه دَ خداوند دَ وړاندِ په مذبح باندِ دي او خپل موټي دِ له تکولو عودو
۱۳ نه ډک کړي او هغه دِ پردي ته دننه راوړي ۱۳ او هغه عود دِ دَ خداوند دَ
وړاندِ په اور واچوي چه هغه دَ عودو لوګي دَ کفاره ګاه چه په شهادت باندِ
۱۴ دي پټ کړي چه دي مړ نه شي ۱۴ بيا دِ دَ هغه سخوندر وينه واخلي او په
خپله ګوته دِ دَ کفاره ګاه نمرخاته طرف ته څڅاڅ کړي او دَ کفاره ګاه دَ وړاندِ

۱۵ دِ هم وینه په خپله گوته اووه ځلَ چنړکاؤ کړِي ۱۵ بیا دِ هغه چیلي حلال
کړِي چه دَ تمام دَپارَ دَ خطا قرباني دي او دَ هغه وینه دِ دننه پردې ته ننباسِي
او دَ دغه دَ وینو سره دِ هسي وکړِي لکه چه دَ سخوندر دَ وینو سره ئي کړِي
۱۶ وُو په کفاره گاه باندِ او دَ کفاره گاه دَ وړاندِ دِ چنړکاؤ کړِي ۱۶ او دَ مقدّس
مکان دَپارَ او دَ بنِي اسرائیلو دَ ناپاکو له سببَ او دَ هغو دَ گناهونو له
سببَ دَ هغو دَ ټولو خطاؤ له سببَ دِ کفاره ورکړِي او هغه دَ جماعت
خیمه چه دَ دوي په مینځ کښ دَ دوي دَ ناپاکو په مینځ کښ ولاړه ده دَ هغي
۱۷ دَپارَ دِ هم داسي وکړِي ۱۷ او په مقدّس مکان کښ دَ ده دَ ننوتلو له وقت
نه دَ کفاره کولو دَپارَ دَ ده دَ راوتلو تر وقتَ پوري یو سړي دِ دَ جماعت په خیمه
کښ نه وِي ننوتي دِ دَ خپل ځان دَپارَ او دَ خپل کور دَپارَ او دَ اسرائیل
۱۸ دَ ټول جماعت دَپارَ کفاره ورکړِي ۱۸ بیا دِ هغه مذبح ته راووځي چه هغه
دَ خداوند دَ وړاندِ ده او دَ هغه دَپارَ دِ کفاره ورکړِي دَ سخوندر له وینو نه
۱۹ دِ واخلِي او دَ مذبح په ښکرونو دِ گیرچاپیر پوري کړِي ۱۹ او له هغو وینو نه
دِ په هغه باندِ اووه ځلَ په خپله گوته چنړکاؤ کړِي او دَ بنِي اسرائیلو له
۲۰ ناپاکو نه دِ ئي پاک او مقدّس کړِي ۲۰ اوچه دَ مقدّس مکان دَپارَ او دَ
جماعت دَ خیمي دَپارَ او دَ مذبح دَپارَ له کفارت ورکولو نه وزگار شي نو
۲۱ هغه ژوندي چیلي دِ وړاندِ کړِي ۲۱ او هارون دِ خپل لاسونه دَ هغه ژوندي
چیلي په سر باندِ کیږدِي او دَ بنِي اسرائیلو په ټولو گناهونو او دَ هغو په
ټولو گناهونو او دَ هغو په ټولو بدو دِ دَ هغو دَ ټولو خطاؤ سره اقرار وکړِي
او هغه دِ دَ هغه چیلي په سر کیږدِي او هغه دِ دَ چا سړِي په لاس چه دَ
۲۲ هغه دَپارَ مقرّر وِي صحرا ته ولیږِي ۲۲ چه هغه چیلي دَ هغو ټولي بدئ به
خپل ځان بار کړِي او صحرا ته ئي یوسِي او هغه دِ هغه چیلي په صحرا کښ
۲۳ پرېږدِي ۲۳ بیا دِ هارون دَ جماعت خیمي ته ننوزِي او مُقَدّس مکان ته
دَ ننوتلو په وقت کښ هغه دَ سنړو زروکي چه ده اُغوستي وُو هغه دِ
۲۴ وباسِي او هلته دِ ئي کیږدِي ۲۴ او خپل تن دِ په پاک ځاي کښ په اوبو باندِ

ووینځي بیا دِ خپل زړوکِي واغوندِي او را دِ ووزِي او خپله دَ سوزلو قرباني
او دَ قوم دَ سوزلو قرباني دِ وکړي او دَ خان دَپارَ او دَ قوم دَپارَ دِ کفاره
۲۵ ۲۶ ورکړِي ۲۵ او دَ خطا دَ قربانۍ وازده دِ په مذبح باندِ وسیزِي ۲۶ او هغه سړي
چه عزازیل ته ئي چیلي پرېښي وه خپل زړوکي دِ ووینځي او خپل تن دِ په اوبو
۲۷ ولښوِي او پس له هغه دِ ډیرِي ته ننوځي ۲۷ او دَ خطا دَ قربانۍ سخوندر
او دَ خطا دَ قرباني چیلي چه دَ هغو وینې دَ کفارهٔ کولو دَپارَ په مُقدّس
مکان کښې ننه یستلي شوي دِي هغه دِ له ډیرِي نه بهر وویستلي شِي
۲۸ او څرمني او غوښي او خزَشَنه دَ هغو دِ په اور وسیزِي ۲۸ او هغه سړي
چه دغه سیزِي هغه دِ خپل زړوکي ووینځي او خپل تن دِ په اوبو ولښوِي
او پس له هغه دِ ډیرِي ته ننوزِي
۲۹ ۲۹ او ستاسو دَپارَ به دا همیشه حکم وِي چه تاسو په اوومه میاشت
کښې په لسمه دَ میاشتي که څوک وطني وِي او که مسافر وِي چه ستاسو
۳۰ په مینځ کښې اوسِي خپل نفسونه به ډېروِئ او هیڅ کار به نه کوِئ ۳۰ ځکه
چه په دغه ورځ کښې به ستاسو دَپاکِي دَپارَ کفاره ورکولي شِي او له
۳۱ ټولو خطاؤ نه به دَ خداوند دَ وړاندِ پاک کړي شِئ ۳۱ دا به ستاسو دَ آرام
دَپارَ سبت وِي او تاسو به خپل نفسونه ډېروِئ دا دَ همیشه حکم به وِي
۳۲ ۳۲ او کوهین چه هغه مسح کولي شِي او هغه چه دَ کهانت دَپارَ دَ خپل
پلار په بدل مقرّر کولي شِي هغه دِ دَ سترو زړوکي هغه مُقدّس زړوکي
۳۳ واغوندِي ۳۳ او دَ مقدّس مکان دَپارَ دِ کفاره ورکړِي او دَ جماعت دَ
خیمې دَپارَ او دَ مذبح دَپارَ دِ کفاره ورکړِي او دَ کوهینانو دَپارَ او دَ جماعت
۳۴ دَ ټول قوم دَپارَ دِ کفاره ورکړِي ۳۴ او دا به ستاسو دَپارَ دَ همیشه حکم وِي
دَ بني اسرائیلو دَ کفاره کولو دَپارَ دَ هغو دَ ټولو ګناهونو له سببه یو ځل په
کال کښې نو لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه هم هغه شان ئي وکړل *

## اولسم باب

۱ ۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي وئي ویل چه ۲ هارون سره او دَ

هغه دَ ځامنو سره او دَ ټولو بنيِ اسرائيلو سره خبري وکړه او ورته ووايه
چه دا هغه خبره ده چه خداوند حکم کړي دي وايي چه ٣ هر سړي دَ اسرائيل ٣
له کوره چه غوايه يا ګډوري يا چيلي حلالوِي په ډيري کښ يا بهر له ډيري نه
حلالوِي ٤ او دَ جماعت دَ خيمي دروازي ته ئې را نه وِلي چه دَ خداوند دَ پارَ ٤
قرباني کړي نو دغه سړي به خساب کړي شي ځکه چه ده خون کړي دي او
دغه سړي دِ له خپلَ قومَ پري کړلي شي ٥ دَدي دَ پارَ چه بني اسرائيل هغه ٥
خپلي قربانئِ چه ئې دوي په صحرا کښ حلالوِي دَ خداوند دَ وړاندِ دَ جماعت
دَ خيمي دروازي ته کوهين له دِ راولي او هغه دَ سلامتيا ذبحي دَ خداوند
دَ پارَ حلالي کړي ٦ او کوهين دِ هغه وينې دَ يَهْوَهْ په مذبح باندِ دَ جماعت ٦
دَ خيمي دروازي څخه چنړکاو کړي او هغه وازده دِ دَ خداوند دَ خوشبوئِ دَ پارَ
وسيزي ٧ او بيا دَ چيلو دَ پارَ هغه چه دوي دَ هغو په متابعت کښ زنا کوِي ٧
خپلي ذبحي دِ نه حلالوِي دَ دوي دَ پارَ به دَ دوي په پيړو کښ دا هميشه حکم وِي
٨ او نه دوي ته ووايه چه هر سړي دَ اسرائيل له کورَ يا له هغو ٨
مسافرو نه چه ستاسو په مينځ کښ اوسي دَ سوزلو قرباني يا ذبيحه چه
دي خيژوِي ٩ او دَ جماعت دَ خيمي دروازي ته ئې نه راولي چه دَ خداوند ٩
دَ پارَ ئې قرباني کړي نو دغه سړي به له خپلَ قومَ پري کړلي شي
١٠ او هر سړي دَ اسرائيل له کورَ يا له هغو مسافرو نه چه ستاسو ١٠
په مينځ کښ اوسِي که دَ څه قسم وينه وخوري نو زه به خپل مخ دَ هغه
وينې خوړونکي نه وګرزوم او له خپلَ قومَ به ئې پري کړم ١١ ځکه چه دَ تن ١١
نفس په وينه کښ دي او ما په مذبح باندِ هغه تاسو له درکړي دي چه
تاسو ئې دَ خپلو نفسونو دَ پارَ کفاره ورکړئِ ځکه چه وينه ده چه دَ نفس
له وسيلي نه کفاره ورکولي شي ١٢ دَدي دَ پارَ بني اسرائيلو ته مي ويلي دي ١٢
چه له تاسو نه دِ هيڅوک وينه نه خوري او هغه مسافر چه ستاسو په مينځ
کښ اوسي هغه دِ هم وينه نه خوري
١٣ او هر سړي له بني اسرائيلو نه يا له هغو مسافرو نه چه ستاسو ١٣

په ښيځ کښې اومي چه هغه ځناور يا مارغه ښکار کړي چه هغه خوړې شي
۱۴ هغه دِ د هغه وينې توې کړي او په خاورو دِ ئې پټې کړي ۱۴ ځکه چه دَ
هر تن نفس چه دي وينې ئې دَ هغه دَ نفس سره برابر ده نو بني اسرائيلو
ته مِ وويل چه دَ هيڅ تن وينه مه خوړئ ځکه چه دَ هر تن نفس هم هغه
۱۵ وينه ده هر څوک چه دغه وخوري نو پرې به کړلي شي ۱۵ او هر څوک چه څه
مرداره وخوري يا هغه ښاروي وخوري چه څه ځناور مات کړي وي وطني
وي او که مسافر وي نو خپل زروکي دِ ووينځي او په اوبو دِ ولامبي او تر
۱۶ نماښامه به ناپاک وي بيا به پاک شي ۱۶ او که و ئې نه وينځل او تن ئې
خپل و نه لمباوه نو هغه به خپله ګناه بار ګرځي ❊

# اته لسم باب

۱ ۲ ۱ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې ويل چه ۲ بني اسرائيلو سره خبرې
۳ وکړه ور ته ووايه چه زه يَهُوَهْ ستاسو الله يم ۳ دَ مصر دَ زمکې په شان
کارونه چه تاسو په کښې اوسيدلئ مه کوئ او دَ کنعان دَ زمکې په شان
کارونه چه زه تاسو وله بيايم مه کوئ او دَ هغو په حکمونو مه ځئ
۴ ۴ زما په حکمونو باندِ عمل کوئ او زما شريعتونه ساتئ په هغو باندِ ځئ زه
۵ يَهُوَهْ ستاسو الله يم ۵ نو تاسو زما شريعتونه ساتئ او زما حکمونه چه که
څوک ئې وکړي نو هغه به پرِ ژوندي شي زه خداوند يم
۶ ۶ هيڅوک سړې دِ دَ خپل خپلوان دَ عورت برمندولو دَ پاره هغه ته
۷ نه نږدې کيږي زه خداوند يم ۷ دَ پلار عورت او دَ مور عورت مه برمندوه
۸ چه هغه ستا مور ده نو ته ئې عورت مه برمندوه ۸ د ميرې مور عورت
۹ مه برمندوه ځکه چه دغه ستا دَ پلار عورت دي ۹ دَ خپلې خور عورت چه
دَ پلار لور دِ وي يا دَ مور لور دِ وي چه په کور کښې پيدا شوې وي او که په
۱۰ بهر پيدا شوې وي دَ هغې عورت مه برمندوه ۱۰ دَ ځوي دَ لور عورت او دَ لور
۱۱ دَ لور عورت دَ هغو عورت مه برمندوه ځکه چه دغه ستا عورت دي ۱۱ عورت
دَ ميرې مور دَ لور چه له پلار دِ پيدا شوې وي هغه ستا خور ده عورت

دَ هغې مه برمنډوه ۱۲ دَ پلار دَ خور عورت مه برمنډوه ځکه چه هغه ستا ۱۲
دَ پلار خپله دَه ۱۳ دَ مور دَ خور عورت مه برمنډوه ځکه چه هغه ستا ۱۳
دَ مور خپله ده ۱۴ دَ پلار دَ ورور عورت مه برمنډوه ښځې ته ئې مه نزدې ۱۴
کیږه ځکه هغه ستا چاچي ده ۱۵ دَ خپلې نږور عورت مه برمنډوه ځکه ۱۵
چه ستا دَ ځوي ښځه دَه عورت دَ هغې مه برمنډوه ۱۶ دَ ورور دَ ښځې ۱۶
عورت مه برمنډوه ځکه چه دغه ستا دَ ورور عورت دي ۱۷ دَ ښځې عورت ۱۷
او دَ هغې دَ لور عورت مه برمنډوه او دَ هغې دَ ځوي لور مه آخله یا دَ
هغې دَ لور لور دَ هغې عورت برمنډولو دَپارَ ځکه چه دغه دواړه دَ هغې
خپلې دِي دغه بې‌حیائي ده ۱۸ ښځه دَ هغې دَ خور دَپاسَ دَ ښتون دَپارَ مه ۱۸
آخله چه دَ هغې عورت به دَ هغې سره دَ هغې په ژوندانه کښې برمنډوې
۱۹ ښځې ته دَ هغې دَ عورت برمنډوالي دَپارَ مه نزدې کیږه څوچه هغه ۱۹
به خپله ناپاکئ کښې پلیته ده ۲۰ او دَ خپل ګاونډي دَ ښځې سره مه ځمله ۲۰
چه ور سره به ته ناپاک شې ۲۱ ته له خپل اولاد نه څوک دَ مولک دَپارَ ۲۱
[په اور کښې] مه تیروه او دَ خپل الله نوم مه سپکوه زه خداوند یم -
۲۲ او دَ سړي سره دَ ښځې په شان مه ځمله دا کار مکروه دي ۲۳ ته دَ ۲۲ ۲۳
څه ښاروي سره مه ځمله ځکه چه ته به ورسره پلیت شې او ښځه دِ دَ
ښاروي دَ وړاندِ نه ودریږي دَ ځملاستو دَپارَ دا قبیح کار دي

۲۴ په دې ټولو کارونو ځانونه مه پلیتوئ ځکه چه په دې ټولو ۲۴
کارنو باندِ هغه قومونه چه مخوا له تاسو نه ما شړلي دِي هغوي پلیت
شوِي دِي ۲۵ او زمکه هم پلیته شوې ده نو دَ هغې دَ ګناه بدل له هغې ۲۵
نه اخلم نو ځکه دا زمکه خپل اوسیدونکي قي کوي ۲۶ نو تاسو زما حکمونه ۲۶
او فرائض ساتئ او له دې مکروه نه هیڅ مه کوئ نه وطني سره او نه
مسافر سره چه ستاسو په مینځ کښې اوسیدونکي وي ۲۷ [ځکه چه دا ټولې ۲۷
مکروهې دَ زمکې خلقو کړې دِي چه له تاسو نه مخوا وُو نو زمکه پلیته شوې
ده] ۲۸ چه زمکه تاسو هم قي نه کړي هرکله چه تاسو ئې پلیتوئ لکه چه هغه ۲۸

۲۹ قوم چه له تاسو نه پخوا وه تي کړي وه ۲۹ بلکه هر چا چه څه کار له دي
مکروهيِ نه وکړي هغه څوک چه دغه کار کوِي له خپلَ قومَ دِ پرِي کړِلي شِي
۳۰ ۳۰ نو تاسو څما حکم ساتيِ دَ دي دَپارَ چه له مکروهيِ نه څه ونه کړيِ
هغه چه پخوا له تاسو نه کړي شوِي وُو او ځانونه په هغو مه پليتويِ
زه خداوند ستاسو الله يم +

# نولسم باب

۱ ۱ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۲ ټول جماعت
۲ سره دَ بني اسرائيلو خبري وکړه او ورته ووايه چه تاسو پاک شيِ څکه
۳ چه زه يَهْوَهْ ستاسو الله پاک يم ۳ ويريږِئِ تاسو هر سړي له خپلي
مور نه او له خپل پلار نه او څما سبتونه ساتيِ زه خداوند ستاسو الله يم
۴ ۴ تاسو دَ بتانو په طرف وراوَړيِ او دَ خپلو ځانونو دپارَ ويلي کړي شوِي
۵ معبودان مه جوړويِ زه خداوند ستاسو الله يم ۵ اوکه دَ سلامتيا قرباني
۶ دَ خداوند دَپارَ حلالويِ نو په خپلي رضامنديِ سره ئي حلالويِ ۶ په هغه
ورځ چه ئي تاسو حلالويِ نو دِ وخوري شِي او صباح له هم اوکه دريمي
۷ ورځي ته څه باقي شِي نو په اور دِ وسيزلي شِي ۷ اوکه په دريمه ورځ وخوري
۸ شِي نو هم مکروه دِي او هغه به قبوله نه کړي شِي ۸ او هرڅوک چه له
هغي نه وخوري نو خپله گناه به په ځان بار کړي څکه چه هغه دَ خداوند
پاک څيز سپک وکاڼهِ نو هغه سړي دِ له خپلَ قومَ پرِي کړي شِي
۹ ۹ او چه تاسو خپله زمکه لوکويِ نو ته به لو کښ دَ خپل پټي
۱۰ کونټونه مه ريبه او دَ خپل لو وږي مه ټولوه ۱۰ او خپل تاکستان ټول
مه ټولوه او دَ خپل تاکستان دَ ميوي پرِيوتيِ داني مه آڅوه دَ فقير او دَ
مسافر دَپارَ ئي پرِيږده زه خداوند ستاسو الله يم
۱۱ ۱۱ تاسو غلا مه کويِ او ټګي مه کويِ او دَ ګاونډي سره دروغ مه
۱۲ وايِ ۱۲ په دروغ سره څما په نوم سوګند مه خوره ته دَ الله نوم سپک مه
۱۳ کړه زه خداوند يم ۱۳ ته له خپل ګاونډي نه په زور څه مه آخله او څه

تِرِ مه نُشكوه او كَ مزدور مزدورِي دَ شپي ثخان تخنه ترصباح پوري مه ساته
١٤ كانړه ته بنكنځل مه كوه او دَ ړانده دَ وړاندِ دَ تيندک خوړلو ثخيز ١٤
مه ږده بلكه له خپل الله نه وويرېږه زه خداوند يم ١٥ تاسو په عدالت ١٥
كښِ بي انصافِي مه كوئِ نو دَ فقير مخ مه كوه او دَ لوي سړي دَ مخ عزّت مه كوه
بلكه په انصاف سره دَ خپل كوانډِي عدالت كوه ١٦ ته دَ چوغلِي خور په شان ١٦
په خپل قوم كښِ مه زه او دَ خپل كوانډِي په خون مه ودرېږه زه خداوند يم
١٧ ته دَ خپل ورور سره په خپل زړه كښِ كينه مه كوه خپل كوانډِي ته ضرور ١٧
وترټه او په هغه خطا مه باركوه ١٨ ته بدل مه اخله او دَ خپل قوم دَ ١٨
اولاد سره كينه مه كوه بلكه په خپل كوانډِي دَ خپل ثخان په شان مينه كوه
زه خداوند يم ١٩ ثخما حكم ساتئِ يوجنس بل جنس چارپايان سره يو په بل ١٩
مه پرېږدئِ ته په خپل پټي كښِ دوه قسمَ تخم مه كره او دوه قسمَ جامي
دِ به تاسو باندِ نه وِي ٢٠ او كه يو سړي د يوي ښځي سره ثخملي چه وينځه ٢٠
وِي او هغه دَ چا سړِي كوژدن كړي وِي او فديه ئي نه وِي وركړي شوي او
نه آزاده كړي شوي وِي نو هغوي له دِ سزا وركړي شِي هغوي دِ وژلي نه شِي
ثخكه چه هغه ښځه آزاده نه وه ٢١ نو هغه دِ دَ خداوند دَپارَ دَ كناه قرباني ٢١
دَ جماعت دَ خيمي دروازي ته يو كډوري دَ كناه دَ قربانئِ دَپارَ راولِي ٢٢ نو ٢٢
كوهين دِ دَ هغه كناه دَ قربانئِ كډوري دَ هغي خطا دَپارَ چه هغه كړي
وه دَ خداوند دَ وړاندِ كفاره وركړِي نو هغه خطا چه هغه كړي دَه وبه بخښلي
شِي ٢٣ او چه تاسو هغه زمكي ته ورشئِ او هره ونه په كښِ دَ خوراک ٢٣
دَپارَ وكړئِ نو ميوه دَ هغو نامختونه كنړئِ تر دري كالو پوري به هغه ستاسو
دَپارَ نامختونه وِي هغه ميوه دِ و نه خوړلِي شِي ٢٤ او په ثخلورم كال به دَ ٢٤
هغو ټولي ميوي به پاكي شِي دَ خداوند دَ لوئِ دَپار ٢٥ او په پنځم كال تاسو ٢٥
دَ هغو ميوه خورئِ چه هغه خپل حاصل ستاسو دَپارَ زيات كړِي زه خداوند
ستاسو الله يم ٢٦ تاسو دَ وينو سره ثخه مه خورئِ او فال مه كوئِ او شكون ٢٦
مه كوئِ ٢٧ تاسو دَ خپلو سرونو ډډي مه خرئِ او دَ خپلي ږيري كوټونه مه ٢٧

۲۸ خرابوئ ۲۸ تاسو دَ مړي دَپارَ خپل تنونه مه خيرئ او هيڅ داغ په خپلو
۲۹ څانونو بانډ مه ږدئ زه خداونديم ۲۹ خپله لور په کنچني توب سره مه سپکوئ
هسي نه وِي چه په زمکه کښ کنچني بازي خوره شي او زمکه له بيحيائي نه
۳۰ ډکه شي ۳۰ تاسو څما سبتونه وساتئ او څما دَ مُقَدَّس مکان ويره کوئ. زه
۳۱ خداوند يم ۳۱ تاسو پيريانو ته مه ګورئ او مه جادوګرو ته هغه مه لټوئ
۳۲ چه پرِ بانډ پليت شئ زه خداوند ستاسو الله يم ۳۲ چه دَ چا سرسپين وِي
ته هغه ته پاسه او د سپين ږيري سړي عزّت کوه او له خپل الله نه
۳۳ ويريږه زه خداوند يم ۳۳ او که څوک مسافر تاڅخه ستا په زمکه کښ اوسي
۳۴ نو ظلم پرِ مه کوئ ۳۴ هغه مسافر چه تاسو څخه اوسي داسي يئ وګڼئ
لکه چه وطني وِي او داسي مينه ورسره کوئ لکه دَ خپل څان سره څکه
چه تاسو هم دَ مصر په زمکه کښ مسافروئ زه خداوند ستاسو الله يم
۳۵ ۳۵ تاسو په عدالت کښ په ګز کښ په تول کښ په پيمانه کښ بي انصافي
۳۶ مه کوي ۳۶ تله دَ حق او تولونه دَ حق او ايفا دَ حق او هين دَ حق دِ ستاسو
دَپاره وِي زه خداوند ستاسو الله يم هغه چه تاسو مِ دَ مصر له زمکي را
۳۷ ويستلي يئ ۳۷ نو څما ټول فرائض او څما ټول حکمونه وساتئ او عمل پرِ
کوئ زه خداوند يم +

# شلم باب

۱ ۱ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۲ ته بني اسرائيلو ته
۲ ووايه چه هرڅوک له بني اسرائيلو نه او له هغو مسافرو نه چه په اسرائيل
کښ اوسي چه خپل اولاد مولک ته ورکوي هغه به ووژلي شي دَ زمکي
۳ قومونه دِ ئي په کاڼرو سنګسار کړي ۳ او زه به له دغه سړي نه مخ وګرزوم
او له خپلَ قومَ به ئي پري کړم څکه چه ده له خپلَ اولادَ مولک ته ورکړي
دي څما دَ مُقَدَّس مکان دَ پليتولو دَپارَ او څما دَ مُقَدَّس نوم دَ سپکولو
۴ دَپارَ ۴ او که دَ زمکي قومونه له دغه سړي نه سترګي پټي کړي په هغه
۵ وقت چه دي له خپلو څامنو نه مولک ته ورکوي او دوئ ئي مړ نه کړي ۵ نو

زه به خپل مخ له دغه سړي نه او د ده له خيلخانې نه وګرزوم او دي او
ټول زناکاران چه په مولک پسې زنا کوي د هغه د قام له مينځ نه به يې
پرې کړم ۶ او هغه سړي چه پيريانو ته او جادوګرو ته ګوري او د هغو په ۶
متابعت کښې زنا کوي مخ به له دغه سړي نه وګرزوم او له خپلو قومونو نه
به يې پرې کړم ۷ نو تاسو خپل ځانونه مُقدّس کړئ او پاک شئ ځکه چه زه ۷
خداوند ستاسو الله يم ۸ ځما حکمونه ساتئ او عمل پرې کوئ زه يهوه مُقدّس ۸
کوونکي ستاسو يم ۹ هر سړي چه پلار ته يا مور ته ښکنځل وکړي نو مړ ۹
دې کړې شي ده خپل پلار او خپلې مور ته ښکنځل کړي دي د ده خون هم په
ده باندې دي ۱۰ او که سړي د يوې ښځې سره زنا وکړي نو که د خپل ګاونډي ۱۰
د ښځې سره زنا وکړي نو هغه زناکار او زناکاره دې ووژلې شي ۱۱ او که سړي ۱۱
د خپل پلار د ښځې سره څملي نو ده د خپل پلار عورت برښنه کړ نو دوي
دواړه دې ووژلې شي د دوي خون به په دوي باندې دي ۱۲ او که سړي د خپل ۱۲
نږور سره څملي نو دوي دواړه دې ووژلې شي ځکه چه دوي ډېر مخالفت کړي
دي د دوي خون هم په دوي باندې دي ۱۳ او که سړي د نارينه سره د ښځې ۱۳
په شان څملي نو دوي دواړو مکروه کار وکړ دوي دواړه دې ووژلې شي د
دوي خون هم په دوي باندې دي ۱۴ او که سړي يوه ښځه او د هغې مور دواړه ۱۴
واخستلې نو دغه بيحيائي ده دي او دوي دواړه دې په اور وسيزلې شي د دې
د پاره چه ستاسو په مينځ کښې بيحيائي پاتې نه شي ۱۵ او که سړي د ځاروي ۱۵
سره څملي نو دي دې ووژلې شي او هغه ځاروي تاسو ووژنئ ۱۶ او که ۱۶
يوه ښځه يو ځاروي ته نژدې شي او ورته پرېوزي نو هغه ښځه او ځاروي
ووژنه دواړه دې ووژلې شي د دوي خون هم په دوي باندې دي ۱۷ او که سړي ۱۷
خپله خور واخلي چه د پلار لور يې وه يا د مور لور يې وه او ده د هغې عورت
وليد او هغې د ده عورت وليد نو دا شرم دي د دوي د قوم د ځامنو د سترګو
د وړاندې دې پرې کړې شي ځکه چه د خور عورت يې برښنه کړي دي خپله
ګناه دې بار کړي ۱۸ او که سړي د پليتي ښځې سره څملي او د هغې عورت ۱۸

برمنډ کړي هغه خپله چينه برمنډه کړي ده او هغې دَخپلو وينو چينه
۱۹ ښکاره کړې نو دواړه دِ له خپلو قومونو نه پرې کړې شي ۱۹ دَ خپلې مور دَخور
عورت او دَ خپل پلار دَخور عورت مه برمنډوه ځکه چه دَ خپلوان
۲۰ برمنډ کړ دواړه به خپله گناه بار کړي ۲۰ او که سړې دَ تره دَ ښځې سره ځملې
نو هغه دَ تره عورت برمنډ کړ دواړه به خپله گناه بار کړي او دواړه به
۲۱ شنډ مړه شي ۲۱ او که سړې دَ ورور ښځه واخستله نو دا پليتي ده دَخپل
ورور عورت برمنډ کړ دواړه به شنډ شي
۲۲ ۲۲ نو تاسو ځما ټول حکم ساتئ او ځما ټول فرايض او عمل پر کوئ دَدې
دَپاره چه هغه زمکه تاسو قې نه کړي چه زه تاسو وله بيايم چه تاسو په کښې
۲۳ اوسئ ۲۳ تاسو دَ هغه قوم په دستورونو مه ځئ چه زه ئې ستاسو له مخې
نه شړم ځکه چه دوي ټول دغه بد کړي دي نو ما ځکه مکروه گنړلي دي-
۲۴ ۲۴ او تاسو ته مې وويل چه تاسو به دَ هغو زمکه په ميراث واخلئ او زه به
دغه تاسو له درکړم چه په ميراث ئې واخلئ هسې زمکه چه پئ او شات
بهوي زه خداوند ستاسو الله يم هغه چه تاسو مې له قومونو نه بيل کړلئ
۲۵ ۲۵ نو تاسو هم دَ پاکو چارپايانو او دَ پليتو او دَ پليتو مرغانو او دَ پاکو په مينځ
کښې جدائي وکړئ خپل ځانونه پر مه مکروه کوئ په چارپايانو او په مرغانو
او په هر ځيز چه په زمکه باندې ځغيږي او ما تاسو ته دَ پليتوالي په سبب جدا
۲۶ کړي دي ۲۶ او تاسو ځما دَپاره پاک شئ ځکه چه زه خداوند پاک يم او تاسو مې
له قومونو نه بيل کړي يئ چه ځما دَپاره شئ
۲۷ ۲۷ او که سړې يا ښځه پيريان لري يا جادوگر وي نو هغه دِ ووژلې
شي او سنگسار دِ ئې کړي دَ هغه خون به په هغه باندې وي ❊

## يوويشتم باب

۱ ۱ بيا خداوند موسیٰ ته وويل چه دَ هارون ځامنو کوهينانو سره خبرې وکړه
او ور ته ووايه چه دَ مړي دَپاره ځوک ځان پليت دِ نه کړي په خپل قام
۲ کښې ۲ مگر دَخپلوانو دَپاره چه ده ته نزدې وي لکه خپله مور او خپل پلار

۳ اوخپل ځوي اوخپله لور اوخپل ورور ۳ اوخپله پيغله خور چه ده ته
۴ نزدي وِي اوښځه لۓ نه وِي کړي نو دَ هغي دَپارَ ځان پليتولي شِي ۴ نو
۵ دَخپل قوم مشر دِ ځان نه پليتوِي چه سپک به شِي ۵ خپل سرونه دِ نه
۶ خرِيِ او دَ خپلو بِيرو کونجونه دِ نه خرِيِ اوخپل تنونه دِ هيڅ نه ځيروِي ۶ دَ
خپل الله دَپارَ دِ پاک شِي اودَ خپل الله نوم دِ نه سپکوِي ځکه چه هغوي
وراندِ کوِي دَ خداوندِ دَ اور قربانِي چه دَ الله ډوډيۓ دَه نو دوي به پاک شِي
۷ ۷ کنجريۓ ښځه يا سپکه ښځه دِ نه اخلِي او ښځه چه خښتن طلاقه کړي وِي
۸ هغه دِ نه اخلِي ځکه چه دي دَخپل الله دَپارَ پاک دي ۸ نو ته دي مُقدّس
کړه ځکه چه دي ستا دَ الله ډوډيۓ وراندِ کوِي ستا دَ وراندِ دِ پاک وِي
۹ ځکه چه زه خداوند پاک يم زه تاسو لره مُقدّس کوم ۹ او که دَ کوهين لور په
کنجري توب کښِ ځان سپک کړِي نو هغې خپل پلار سپک کړ هغه دِ په اور
وسيزلي شِي
۱۰ ۱۰ او هغه چه په خپلو ورونړو کښِ سردار کوهين وِي چه په سر ئي
دَ ممسوح کولو تيل اړولِي شوِي وِي او مقرّر کړي شوِي وِي چه هغه زروکِي
۱۱ واغوندِي خپل سر دِ نه برمنډوِي اوخپل زروکِي دِ نه شلوِي ۱۱ اومړِي له
۱۲ دِ نه ورځِي او دَ خپل پلار يا دَ خپلي مور دَپارَ دِ ځان نه پليتوِي ۱۲ او
دَ مُقدّس مکان نه دِ نه ووځِي چه دَ خپل الله مُقدّس مکان سپک
نه کړِي ځکه چه دَ خپل الله دَ ممسوح کُولو دَ تيلو تاج په ده باندِ دي
۱۳ ۱۴ زه خداوند يم ۱۳ دي دِ پيغله ښځه په نکاح اخلِي ۱۴ کُنډه اوطلاقه کړي
شوي او سپکه او کنجريۓ له دوي نه دِ نه اخلِي بلکه هم له خپلَ قوم پيغله
۱۵ ښځه دِ واخلِي ۱۵ خپل تخم دِ په خپل قوم کښِ نه سپکوِي ځکه چه زه
خداوند دَ ده مُقَدَّس کوونکي يم
۱۶ ۱۷ ۱۶ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۱۷ هارون
سره خبري وکړه ووايه چه که ستا له اولادَ سري وِي چه دَ هغو په پيړو
کښِ په هغه کښِ څه عيب وِي نو هغه دِ نه وراندِ کيږِي چه دَخپل الله

۱۸ ډوډئ وراندِ کړي ۱۸ ځکه چه هر سړي چه په هغه کښ عيب وي هغه
دِ نه وراندِ کيږي نه ړوند سړي او نه ګډ سړي او نه چيت پوزي او نه چه
۱۹ په اندامونو کښ ئې زياتي وي ۱۹ او نه هغه سړي چه ئې پښه ماته وي
۲۰ يا ئې لاس مات وي ۲۰ او نه کوبي او نه غونډي او نه هغه چه په سترګه
کښ ئې ګل وي يا دَ خارښت خاوند وي او نه دَ سپوږي خاوند او نه
۲۱ ژوبل خايه ۲۱ هر سړي دَ هارون کوهين له اولادَ چه په کښ عيب وي
هغه دِ نه راځي چه دَ خداوند دَپارَ د اور قرباني وکړي په ده کښ عيب دي
۲۲ نو هغه دِ وراندِ نه راځي چه دَ خپل الله ډوډي وراندِ کړي ۲۲ دَ خپل
۲۳ الله ډوډئ له پاکيو نه پاکه ده او پاکو ده وبه ئې خوري ۲۳ ليکن پردي
ته دِ نه ننوځي او مذبح ته دِ نه نزدي کيږي ځکه چه په ده کښ عيب
دي چه زما مقدّس ځايونه سپک نه کړي ځکه چه زه خداوند مقدّس کوونکي
۲۴ دَ دوي يم ۲۴ نو موسیٰ دَ هارون سره او دَ هغه دَ ځامنو سره او دَ ټولو
بني‌اسرائيلو سره خبري وکړي *

## دوه ويشتم باب

۱ ۲ ا بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئې ويل چه ۲ هارون ته او دَ هغه
ځامنو ته ووايه چه دوي دِ بني‌اسرائيلو له مقدّسو څيزونو نه ځانونه
وساتي چه هغوي ئې زما دَپارَ مقدّس کوي او زما مقدّس نوم دِ نه سپکوي
۳ زه خداوند يم ۳ دوي ته ووايه چه ستاسو په پيړو کښ هر سړي ستاسو
له ټول اولاد نه چه پليتي په هغه باندِ وي او هغه مقدّسو ته نزدي
شي چه هغه بني‌اسرائيل دَ خداوند دَپارَ مقدّس کوي دغه سړي دِ زما له
۴ مخَ بري کړي شي زه خداوند يم ۴ هر سړي دَ هارون له ځامنو نه چه کوړي
يا دَ بهيدلو مرض لئ وي نو له مقدّسو نه دِ نه خوري تر هغه پوري چه پاک
شي او که څوک هغه څيز مسه کړي چه دَ مړي په سبب پليت شوي وي
۵ يا سړي چه اودس پرِ اوريدلي وي ۵ يا سړي وي چه څه خځيدونکي مسه
کړي او په هغه پليت شي يا سړي سره چه له هغه نه ناپاکي اخستي شي څه

۶ ناپاکي چه ئې وِي ۶ نو هغه سړي چه دغه ئې مسه کړي وِي تر نماښامَ به
ناپاک وِي او له مقدّسو نه به څه نه خوري ترڅو چه خپل تن ئې په اوبو
۷ نه وِي لمبولي ۷ چه نمر پرېوزي نو دي به پاک شي بيا دِ له مقدّسو نه
۸ خوري ځکه چه هغه دَده ډوډيِ دَه ۸ مرداره او مانه کړي شوي دِ نه خوري
۹ دي به پرِ پليت شي زه خداوند يم ۹ نو څما شريعت دِ ساتي هسي نه
وِي چه دوي دَ هغه په سبب خطابار کړي او په کښ مړ شي که دوي
۱۰ ئې سپکوي زه مقدّس کوونکي دَدوي يم ۱۰ هيڅوک پردي سړي دِ پاک
څيز نه خوري څوک چه دَ کوهين سره اوسي يا دَ هغه مزدور وِي هغوي
۱۱ دِ پاک څيز نه خوري ۱۱ او که څوک کوهين په بيه باندِ واخلي دَخپلو روپو په
بيه باندِ نو هغه به له هغه نه خوري او هغه چه دَده په کور کښ پيدا
۱۲ شوِي دِي هغوي به له هغي ډوډيِ نه خوري ۱۲ او که دَ کوهين لور دَچا پردِي
۱۳ سړِي ښځه شوله هغه دِ هم له مقدّسو نه دَ پورته قرباني نه خوري ۱۳ او
دَ کوهين لور چه کُنډه شوله يا طلاقه کړلي شوله او اولاد ئې نه وه او بيا
دَخپل پلار کور ته راغله لکه چه په خپل ځنيُ والي کښ وه نو هغه دِ دَ
خپل پلار له ډوډيِ نه خوري ليکن څوک پردي سړي دِ له هغي نه نه خوري
۱۴ ۱۴ او که يو سړي مُقدّس په تير سره وخوري نو پنځمه حصه دِ په هغه
۱۵ زياته کړي او پاک څيز به کوهين له ورکړي ۱۵ نو دَ بني‌اسرائيلو مُقدّس
۱۶ څيزونه هغه چه هغوي ئې دَ خداوند دَپارَ پورته کوي نه دِ سپکوي ۱۶ نو په
سبب دَ خوړلو دَ مقدّسو څيزونو دوي به په ځانونو گناه بار کړي ځکه
چه زه خداوند مقدّس کوونکي دَ دوي يم

۱۷ ۱۸ ۱۷ بيا خداوند دَ موسىٰ سره خبري وکړي و ئې ويل چه ۱۸ هارون سره
او دَ هغه دَ ځامنو سره او دَ ټولو بني‌اسرائيلو سره خبري وکړه او ور ته
ووايه چه هر سړي دَ اسرائيل کورَ او له هغو مسافرو نه چه په اسرائيل
کښ دِي دَ نذر دَ ټولو قربانو خپلو نه يا دَ نفلو دَ ټولو قربانو نه هغه
۱۹ چه دَ سوزلو قرباني دَ خداوند دَپارَ ورانډِ کوي ۱۹ چه تاسو قبول کړي شيِ

۲۰ نو تاسو به له غوایانو نه له ګډورو نه یا له چیلو نه نر روغ راولئ ۲۰ هر
هغه چه په کښې عیب وِي هغه مه قرباني کوئِ ځکه چه هغه ستاسو دَپارَ
۲۱ نه قبلیږي ۲۱ او که سړي دَ سلامتیا قرباني دَ خپل نذر دَ پوره کولو په
سبب دَ خداوند دَپارَ قرباني کړي یا نفل قرباني له غوایانو یا له بزو ګډو نه
۲۲ نو دَ قبلیدلو دَپارَ دِ روغه وِي هیڅ عیب دِ په کښې نه وِي ۲۲ ړنده یا ژوبله
یا مانه یاچه پرِ ننکئِ وِي یا خارښت وِي یا سپونړي وِي نو دغه دَ خداوند
دَپارَ مه وړاندِ کوئِ او له دوي نه دَ اور قربانئِ مکوئِ په مذبح باندِ دَ
۲۳ خداوند دَپارَ ۲۳ غوایه یا وري که څه اندام ئې زیات یاکم وِي نو دَ نفلو
۲۴ دَپارَ کولي شِي لیکن دَ نذر دَپارَ نه قبلیږي ۲۴ او هغه چه ټکولي شوي
وِي یا مښلي شوي وِي یا مات کړيِ شوي وِي یا پریکړي شوي وِي دَ خداوند
۲۵ دَپارَ ئې مه قرباني کوئِ او په خپله زمکه کښې داکار مه‌کوئِ ۲۵ او له
دي ټولو نه دَ جاٌ مسافر له لاسَ دَخپل الله دوډئِ مه وړاندِ کوئِ ځکه
چه په دوي کښې خرابي ده په دوي کښې عیب دي په هغه سره ستاسو دَپارَ
نه قبلیږي
۲۶ ۲۷ ۲۶ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲۷ خسي یا
وري یاچیلي وزیږیږي نو اووه ورځي دِ دَ مور دَ لاندِ وِي پس له اتمي
۲۸ ورځي نه څه دَپاسَ دَ خداوند دَ اور دَ قربانئِ دَپارَ به قبول کړي شِي ۲۸ غوا
۲۹ یا ګډه چه وِي تاسو ئې سره ذبحي په یوه ورځ مه حلالوئِ ۲۹ او چه دَ خداوند
۳۰ دَ شکر دَپارَ قرباني حلالوئِ نو تاسو به دَ قبلیدلو دَپارَ حلالوئِ ۳۰ په دغه
ورځ کښې دِ وخوړلي شِي او صباح ته له هغي نه دِ پاتي نه شِي زه خداوند
۳۱ ۳۲ یم ۳۱ نو ځما حکمونه ساتئِ او عمل پرِ کوئِ زه خداوند یم ۳۲ او ځما
مُقدّس نوم مه سپکوئِ زه دِ په مینځ دَ بني‌اسرائیلو کښې مقدّس کړي
۳۳ شم زه خداوند مقدّس کوونکي ستاسو یم ۳۳ هغه چه تاسو ئې دَ
مصر له زمکي نه را وویستلي یئِ دَدي دَپارَ چه ستاسو الله شم
زه خداوند یم +

# درویشتم باب

۱ ۲ آ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و لئ ویل چه ۲ دَ بنيِ‌اسرائیلو سره
خبري وکړه او ورته ووایه چه هغه دَ خداوند اخترونه چه تاسو به مقدّس
۳ مجلسونه مشهوروئ هغه ځما اخترونه دادي ۳ شپږ ورځي دِ کار وکړي شي
او په اوومه ورځ کښ دَ مقدّس مجلس دَ آرام سبّت دي تاسو هیڅ کار
مه کوئ دا ستاسو په ټولو ځایونو کښ دَ خداوند دَپارَ سبت دي
۴ ۴ دا دَ خداوند اخترونه مقدّس مجلسونه دي چه به هغوته تاسو په
۵ خپلو خپلو وختونو کښ مشهوروئ ۵ دَ ورومبئ میاشتي په څوارلسمه ورځ
۶ دَ میاشتي په نماښام کښ دَ خداوند فصح ده ۶ او دَ دغي میاشتي په پنځلسمه
ورځ دَ خداوند دَپارَ دَ فطیري ډوډئ اختر دي اووه ورځي تاسو فطیره ډوډئ
۷ خورئ ۷ په ورمبئ ورځ به ستاسو دَپارَ مقدّس مجلس وِي هیڅ دَ محنت
۸ کار په کښ مه کوئ ۸ او اووه ورځي دَ خداوند دَپارَ دَ اور قرباني کوئ په
اوومه ورځ به مقدّس مجلس وِي هیڅ دَ محنت کار په کښ مه کوئ
۹ ۱۰ ۹ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و لئ وِیل چه ۱۰ دَ بنيِ‌اسرائیلو
سره خبري وکړه او ور ته ووایه چه هرکله چه تاسو هغي زمکي ته ننوځئ
چه زه ئي تاسو له درکوم او دَ هغي غله لو کړئ نو ورمبئ کیډئ له خپلي
۱۱ غلي نه کوهین له راوړئ ۱۱ نو هغه کیډئ دِ دَ خداوند دَ وړاندِ وخوځوئ چه
هغه ستاسو دَپارَ قبوله شي او کوهین دِ هغه دَ سبّت په صباح وخوځوي
۱۲ ۱۲ او تاسو دَ کیډئ خوځولو په ورځ کښ دَ یو کال روغ کډوري دَ سوزلو
۱۳ قرباني دَ خداوند دَپارَ وکړي ۱۳ او دَ دي دَ هدیي قرباني دوه‌لسمي حصی دَ
ایفا دَ میدي په تیلو کښ اغږلي شوي د اور قرباني دَخوشبوئ دَ خداوند
دَپارَ دِ وکړي شي او څلورمه حصه دَ هین له شرابو نه دَ هغي سره دَ
۱۴ تویولو قرباني دِ وِي ۱۴ او دَ دغي ورځي پوري چه څو تاسو دَ خپل الله قرباني
راولئ ډوډئ او وریت وږي او اُوم وږي مه خورئ ستاسو په ټولو پیړوکښ

او ستاسو په ټولو ځايونو کښې دا حکم دي
۱۵ ۱۵ او تاسو دَ سبت په صباح له چه په هغه ورځ کښې دَ کېدېږئ
۱۶ قربانۍ خوځولې شي شمار وکړئ چه اووه سبتونه پوره شي ۱۶ دَ اووم سبت
ترصباحَ پورې پنځوس ورځې وشمارئ نو بيا دَ خداوند دَپارَ دَ هديې نوې قربانۍ
۱۷ وکړئ ۱۷ تاسو له خپلو کورونو نه دَ دوه وُلسمو حصو دَ ايفا دوه ګکوړې دَ
خوځولو دَپارَ راوړئ او دغه دِ دَ ميدې وي او دَ خميرې سره دِ پخې کړې
۱۸ شي اوّله مېوه دِ دَ خداوند دَپارَ وي ۱۸ او دَ هغه ګکوړو سره دِ روغ اووه ګډورې
يو کلنې او يو سخوندر او دوه مړان راولئ هغوي به دَ خداوند دَپارَ دَ سوزلو
قربانۍ سره دَ هغوي دَ هديې قربانۍ او دَ تويولو قربانۍ راولئ چه هغه
۱۹ دَ خداوند دَ خوشبوئ دَپارَ د اور قربانۍ شي ۱۹ او يو چيلې دَ خطا دَ قربانۍ
دَپارَ او دوه يو کلنې ګډورې دَ سلامتيا قربانۍ دَ ذبحې دَپارَ وړاندِ
۲۰ کړئ ۲۰ نو کوهين دِ يئ دَ نوې غلې دَ ډوډۍ سره دَ خوځولو قربانۍ دَ خداوند
دَ وړاندِ دِ وخوځوي سره دَ دوارو ګډورو هغوي به خداوند له دَ کوهين
۲۱ دَپارَ پاک شي ۲۱ او تاسو به هم دغه ورځ مشهور کړئ دغه به ستاسو
دَپارَ مقدّس مجلس شي تاسو هيڅ دَ محنت کار مه کوئ ستاسو په ټولو
ځايونو کښې په ټولو پيړو کښې دا دَ هميشه حکم دي
۲۲ ۲۲ او چه تاسو خپله مزکه لو کوئ نو دَ خپلې پټې کونټونه ټول
مه ريبئ او چه هغه ريبلې شوئ پريوځې هغه وړې مه ټولوئ هغه
مسکينانو او مسافرانو ته پرېږدئ زه خداوند ستاسو الله يم
۲۳ ۲۴ ۲۳ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې وئ ويل چه ۲۴ دَ بنې اسرائيلو
سره خبرې وکړه ونوايه چه دَ اووم مياشتې په وړمبئ ورځ دَ مياشتې
ستاسو دَپارَ سبت دې اودَ شپېلئ غږولو يادول او مقدّس مجلس
۲۵ به وي ۲۵ هيڅ دَ محنت کار مه کوئ مګر دَ اور قربانۍ دَ خداوند دَپارَ کوئ
۲۶ ۲۷ ۲۶ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې وئ ويل چه ۲۷ دَ دې
اووم مياشتې لسمه ورځ دَ کفارې ورځ ده ستاسو مقدّس مجلس به

وِي تاسو په دغه ورځ کښ خپل ځانونه ودرېوئِ او دَ خداوند دِپارَ دَ اور
۲۸ قربانِي وکړئِ ۲۸ تاسو هم په دغه ورځ کښ هيڅ کار مه کوئِ ځکه چه دغه
۲۹ دَکفارِي ورځ ده چه دَ يَهُوَهُ الله خپل دَ وړاندِ کفاره ورکړئِ ۲۹ او چه
هر سړي هم په دي ورځ کښ ځان ونه ربړوِي نو هغه دِ له خپل قومَ
۳۰ نه پرېکړي شي ۳۰ او هر سړي چه هم په دغه ورځ کښ څه کار وکړي نو
۳۱ زه به هغه سړي دَ هغه له قومَ فنا کړم ۳۱ تاسو به هيڅ شان کار مکوئِ
ستاسو په پيړو کښ او ستاسو په ټولو ځايونو کښ دا دَ هميشه حکم دي
۳۲ ۳۲ دا ستاسو دِپارَ دَ آرام سبت دي نو تاسو خپل ځانونه ودرېوئِ تاسو
دَ مياشتي دَ نهي ورځي په نمابنام کښ له نمابنامَ تر نمابنامَ پوري تاسو
خپل سبت ومنئِ

۳۳ ۳۴ ۳۳ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۳۴ دَ
بنِي اسرائيلو سره خبري وکړه او ووايه چه دَدي اوومي مياشتي له پنځلسي
۳۵ ورځي نه اووه ورځي به دَ خداوند دِپارَ دَ جونګړو اختر وِي ۳۵ په وړنبئِ ورځ
۳۶ به مُقدّس مجلس وِي تاسو هيڅ دَ محنت کار مکوئِ ۳۶ اووه ورځي دَ خداوند
دِپارَ دَ اور قربانِي کوئِ په اتمه ورځ به ستاسو مُقدّس مجلس وِي دَ يَهُوَهُ
دِپارَ دَ اور قربانِي کوئِ دا اعتکاف دي هيڅ دَ محنت کار مه کوئِ

۳۷ ۳۷ دا دَ خداوند اخترونه دِي چه په دي کښ مُقدّس مجلسونه مشهورو ئ
چه دَ خداوند دِپارَ ذ اور قربانِي دَ سوزلو قربانِي او دَ هديي قربانِي ذبيحه
۳۸ او دَ ټويولو قربانِي په خپله خپله ورځ وکړئِ ۳۸ بغير دَ خداوند له سبتونو او
بغير ستاسو له بخښنو او بغير ستاسو له ټولو نذرونو او بغير ستاسو له
ټولو نفلونو هغه چه تاسو ئي دَ خداوند دِپارَ ورکوئِ

۳۹ ۳۹ او دَ اوومي مياشتي په پنځلسمه ورځ چه تاسو دَ زمکي ميوي
جمع کړئِ نو دَ اووهٔ ورځو پوري دَ خداوند دِپارَ اختر وکړئِ په وړنبئِ ورځ
۴۰ به دَ آرام سبت وِي او په اتمه ورځ کښ به هم دَ آرام سبت وِي ۴۰ نو تاسو
په وړنبئِ ورځ دَ ځانونو دِپارَ دَ ښايستهٔ ونو ميوي او دَ کجورو لښتي او

دَ کنړو ونو څانګي او دَ ولو ولي واخلئ او تاسو دَ خداوند الله خپل دَ وړاندِ
۴۱ دَ اووه وُ ورځو پوري خوشحالي وکړئ ۴۱ او تاسو په کال کښ دَ خداوند دَپارَ
دَ اووه وُ ورځو اختر کوئ ستاسو پيړئ په پيړئ به دا دَ هميشه حکم وي
۴۲ په اوومه مياشت کښ به وکړئ ۴۲ تاسو دَ اووه وُ پوري په جونګړو کښ
۴۳ اوسئ څومره چه دَ اسرائيل اولاد دي ټول دِ په جونګړو کښ اوسي ۴۳ چه
ستاسو ټولي پيړئ پوه شي چه ما بني‌اسرائيل دَ مصر له زمکي نه راويستلي
۴۴ دي نو په جونګړو کښ مِ اوسولي دِي زه خداوند ستاسو الله يم ۴۴ نو موسىٰ
بني‌اسرائيلو ته دَ خداوند اخترونه بيان کړل *

## څليريشتم باب

۱ ۱ بيا خداوند دَ موسىٰ سره خبري وکړي و ئې ويل چه ۲ بني‌اسرائيلو ته حکم
۲ وکړه چه ستا دَپارَ دَ نکولي شوي ښونه خالص تيل دَ رڼا دَپارَ راوړي چه
۳ مدام ډيوه بلولي شي ۳ هارون دِ هغه دَ جماعت په خيمه کښ دَ شهادت
له پردي نه بهر له نمابنامَ تر صباحَ پوري دَ يَهوَهْ دَ وړاندِ ږدِي دا ستاسو
۴ پيړئ په پيړئ کښ دا دَ هميشه حکم دي ۴ ډيوي دِ هميشه په پاک ډيوټ
باندِ دَ خداوند دَ وړاندِ ږدِي

۵ ۵ او ته ميده واخله او دولس ککوړي تر پاخه کړه او هر يو ککوړي دِ
۶ دوه لسمي حصي دَ ايفا وِي ۶ او ته هغه دَ خداوند دَ وړاندِ په پاک ميز باندِ
۷ دوه قطاره کړه په هر قطار شپږ ۷ او ته په هر قطار باندِ پاک لوبان
کيږده چه هغه په ډوډئ باندِ دَ يادګارئ دَپارَ وِي چه دَ اور قرباني دَ
۸ خداوند دَپارَ شِي ۸ او هميشه دَ بني‌اسرائيلو له طرفَ دَ هميشه عهد دَپارَ
۹ دَ هر سبت په ورځ کښ دَ خداوند دَ وړاندِ دِ کيږدِي ۹ نو دغه دَ هارون
او دَ هغه دَ زامنو دَپارَ دِي دوي دِ دغه په مقدّس مکان کښ وخوري
څکه چه دغه دَده دَپارَ دَ خداوند دَ اور له قربانو نه چه هميشه حکم دي
پاکه له پاکو ده

۱۰ ۱۰ او دَ يوي اسرائيلئ ښځي څوي چه پلار ئې مصري وه دَ بني‌اسرائيلو

په مينځ کښې لاړ شه او هغه دَ اسرائيلۍ ښځې ځوی دَ يو اسرائيلي سړي
۱۱ سره په ډيره کښې جګړه وکړله ۱۱ نو اسرائيلۍ ښځې ځوی دَ خداوند په نوم کفر
وواېه او ښکنځل ئې وکړل نو موسیٰ ته ئې راوست او دَ مور نوم ئې شلوميث
۱۲ وه چه هغه دَ دبري لور وه او دَ دان له فرقې نه وه ۱۲ نو هغوی بندي کړ
ترڅو پورې چه دَ خداوند له خولې نه دوی ته ظاهر نه کړې شي

۱۳ ۱۴ ۱۳ نو خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې ويل چه ۱۴ هغه چه
ښکنځل ئې کړي دي هغه له ډيرې نه بهر وباسه نو ټول اوريدونکي ئې دَ
هغه په سر باندې خپل لاسونه کيږدي او ټول جماعت دې ئې سنګسار کړي
۱۵ ۱۵ او بني اسرائيلو سره خبرې وکړه او ورته وواېه چه هرڅوک چه خپل
۱٦ الله ته ښکنځل وکړي هغه به خپله خطا بار کړي ۱٦ او څوک چه دَ خداوند په
نوم کفر وواېه نو هغه دې ضرور ووژلې شي ټول جماعت دې ئې ضرور
سنګسار کړي که مسافر وي که وطني وي هر وقت چه ئې دَ هغه په
۱۷ نوم کفر وواېه ودې ووژلې شي ۱۷ او که څوک څوک چا له تر مرګه ووهي نو
۱۸ هغه به ضرور ووژلې شي ۱۸ او که څوک څاروی تر مرګه ووهي نو دَ هغه
۱۹ بدل دې ورکړي دَ نفس په بدل نفس ۱۹ او که څوک خپل همسايه ژوبل کړي
۲۰ نو لکه چه څنګه ئې وکړل هغه شان به ورسره وکړې شي ۲۰ دَ ماتول بدل
ماتول دَ سترګې بدل سترګه دَ غاښ بدل غاښ لکه چه په سړي کښې عيب
۲۱ پيدا کړ هغه شان به په ده کښې پيدا کړې شي ۲۱ که څاروی مړ کړ نو بدل
۲۲ دې ورکړي او که سړی ئې مړ کړ نو دی دې مړ کړې شي ۲۲ ستاسو دَ يار يو شان
۲۳ عدالت دی مسافر دَ وطني په شان دی زه خداوند ستاسو الله يم ۲۳ نو موسیٰ
بني اسرائيلو ته وويل چه هغه چه ښکنځل ئې کړي دي هغه له ډيرې نه
بهر وويستلې او په کاڼو ئې سنګسار کړي نو لکه چه خداوند موسیٰ ته
حکم کړی وه بني اسرائيلو هغه شان وکړل *

## پنځه ويشتم باب

۱ ۱ بيا خداوند دَ موسیٰ سره دَ سينا په غره کښې خبرې وکړې و ئې ويل چه

۲ ۲ بنيِ اسرائيلو سره خبري وکړه او ور ته ووايه چه هغه زمکي له چه
تاسو ورشئ چه زه يې تاسو له درکوم هغه زمکه دِ دَ خداوند دَپاره سبت کړي
۳ ۳ شپږ کاله خپل پټي کره او شپږ کاله دَ انګورو څانګي وهه او حاصل يې
۴ جمع کوه ۴ ليکن په اووم کال دِ دَ زمکي دَپاره دَ آرام سبت وي دَ خداوند دَپاره
۵ دِ سبت وي مه خپل پټي کره او مه خپل دَ انګورو څانګي وهه ۵ ستا په
فصل کښ چه څه پخپله وټوکيږي هغه مه ريبه او دَ خپلو انګورو داني چه
۶ تا يې څانګي وهلي نه وي مه ټولوه دَ زمکي دَپاره دِ دَ آرام کال وي ۶ دَ زمکي
سبت دِ تاسو له ډوډۍ وي تا له ستا مريي له ستا وينځي له ستا مزدور
۷ له او ستا هغه مسافر له چه تا څخه اوسي ۷ او ستا دَ څارو دَپاره او هغه
چارپاي له چه ستا په زمکه کښ وي ټول حاصل دَ هغو دَ خوړلو دَپاره
دِ وي
۸ ۸ او ته څان اووه سبتونه دَ کالونو اووه کاله اووه واره وشماره ستا
۹ دَپاره به دَ کال دَ اووهٔ سبتونو ورځي نه څلويښت کاله شي ۹ نو ته دَ اووم
مياشتي په لسمه ورځ به لوي آواز طرئي وغږوه دَ کفاره په ورځ به ټوله
۱۰ خپله زمکه کښ طرئي وغږوئ ۱۰ نو تاسو پنځوسم کال مُقدّس کړئ او په تمامه
زمکه ټولو اوسيدونکو دَ هغي ته دَ آزادۍ مشهور کړئ دا به ستاسو دَپاره
يوبيل وي او هر سړي به خپل قبض کړي شوي ملک ته ورو ګرزي او ټول
۱۱ به خپلي خيلخانې ته ور وګرزي ۱۱ دغه پنځوسم کال به ستاسو دَپاره يوبيل
وي مه څه کرئ او مه هغه ريبئ چه پخپله ټوکيدلي وي او له هغه
۱۲ نه چه تاسو يې څانګي وهلي نه وي مه جمع کوئ ۱۲ څکه چه دا يوبيل دي
ستاسو دَپاره به مُقدّس وي په پټو کښ چه څه حاصل شي تاسو هغه
۱۳ خورئ ۱۳ دَ دي يوبيل په کال کښ تاسو ټول خپل خپل قبض کړي شوي
۱۴ ملک ته ورو ګرزئ ۱۴ او که په خپل ګاونډي باندِ څه خرڅوئ يا دَ خپل
ګاونډي له لاسَ څه اخلئ نو هيڅوک دِ له تاسو په خپل ورور ظلم ونه کړي
۱۵ ۱۵ پس له يوبيلَ ته دَ کالونو په شمار دَ خپل ګاونډي له لاسَ آخله او

هغه دِ دَ حاصلاتو دَ کالونو په شمار په تا باندِ خرڅوِي ۱۶ دَ کالونو په ډیروالِي ۱۶
ته دَ هغه قیمت زیات کړه او دَ کالونو په کموالِي ته دَ هغه قیمت کم کړه
ځکه چه دَ حاصلاتو په شمار هغه په تا باندِ خرڅوِي ۱۷ نو هیڅوک دِ په ۱۷
خپل ګاوندِي ظلم نه کوِي بلکه له خپل الله نه وویرېږه چه زه خداوند
ستاسو الله یم ۱۸ نو تاسو څما په حکم عمل کوئِ او څما فرائض ساتئِ او ۱۸
په هغو باندِ عمل کوئِ چه تاسو په زمکه باندِ په امان اوسئِ ۱۹ او زمکه ۱۹
به خپله میوه درکړِي او تاسو به مړه ګیده وخورئِ او په هغي باندِ په امان
اوسئِ ۲۰ او که تاسو وایئِ چه مونږ به په اووم کال څه خورو ځکه چه ګوره ۲۰
نه مونږ څه وکرل او نه مونږ حاصل جمع کړ ۲۱ نو زه به په شپږم کال په ۲۱
تاسو باندِ خپل برکت وفرمایم او زمکه به تاسو له دَ دريِ کالو حاصل درکړِي
۲۲ تاسو به اتم کال کر وکړئِ او دَ نهم کالَ پورِي زوړ حاصل خورئِ تر ۲۲
څو پورِي چه دَ هغي نوِي حاصل راځِي تاسو زوړ حاصل خورئِ ۲۳ زمکه دِ ۲۳
بیع بات نه شِي خرڅولئِ ځکه چه زمکه څما ده او تاسو ما سره مسافران او
اوسیدونکي یئِ ۲۴ تاسو به ټوله زمکه کښ چه تاسو قبض کړِي دَه ۲۴
دَ خپلو ملکونو دَ زمکِي فدیه ورکوئِ

۲۵ که ستا ورور محتاج شِي او له خپل مقبوضه ملک څه خرڅ ۲۵
کړِي نو دَ هغه له نزدي خپلوانو نه دِ څوک راشِي چه هغه په فدیه خلاص
کړِي نو هغه دَ ورور خرڅه کړِي زمکه دِ خلاصه کړِي ۲۶ او که دَ هغه ۲۶
څوک خلاصونکي نه وِي نو که لاس ئِي ورسید او دومره قدر وِي چه
هغه پرِ خلاصه کړِي ۲۷ نو هغه دِ دَ خپلو خرڅولو کالونه وشمارِي نو هغه ۲۷
زیاتِي دِ هغه سړِي له ورکړِي چه په هغه ئِي خرڅه کړِي وِي او دي به بیا
خپل مقبوضه ملک له ورشِي ۲۸ او که لاس ئِي نه رسیږِي چه دَ خپل ۲۸
ځان دپارَ ئِي بیا واخلِي نو هغه خرڅ کړِي شوي ملک دِ دَ یوبیل دَ کالَ
پورِي دَ هغه دَ اخستونکي په لاس کښ وِي بیا په یوبیل کښ به دَ هغه
له لاس ووځِي نو دي به بیا خپل مقبوضه ملک له ورشِي

۲۹ ۲۹ اوکه سړي دَ اوسیدلو کور په قلادار ښهر کښې خرڅ کړ خلاصول
ئې دَ هغه له خرڅولو نه ترکالَ پورې دِي په کال کښې دِ دَ هغه خلاصول
۳۰ وِي ۳۰ اوکه پخوا دَ تمام کال له پوره کیدلو نه خلاص نه کړي شه نو هغه
کور چه په هغه قلادار ښهر کښې وِي چه دَ هغه قلا وِي په بیع بات سره
دَ اخستونکي دَپارَ دَ هغه په نسلو پیړوکښې به ثابت او په یوبیل کښې
۳۱ به دَ هغه له لاسَ نه ووځي ۳۱ لیکن دَ باندِو کورنه چه چاپیر دَ هغو
قلانه وِي نوهغه دَ پټو دَ زمکي سره شمارلي شِي دَ هغې خلاصول شته دي
۳۲ او په یوبیل کښې به له لاسَ ووځي ۳۲ مګر ښهرونه دَ لاویانو کورونه دَ
ښهرونو دَخپلي قبضي لاویان به ئې په خپل وقت باندِ خلاصولي شِي -
۳۳ ۳۳ او هغه خرڅ کړي شوي کور دَ ملک په مقبوضه ښهر کښې چه له لاویانو
ئې څوک خلاص کړي نو په یوبیل کښې هغه له لاسَ ووځي ځکه چه دَلاویانو
دَ ښهرونو کورونه دَ بنيِ اسرائیلو په مینځ کښې هم دَدوي مقبوضه ملک دي
۳۴ ۳۴ او هغه پټي چه دَدوي له ښهرونو نه چاپیر دِي هغه نه شِي خرڅولي
ځکه چه هغه دَدوي همیشه مقبوضه ملک دي
۳۵ ۳۵ که ستا ورور محتاج شه او ستا په نزدي لاس ئې تنګ شه نو
۳۶ ته ورسره مددګاري وکړه لکه مسافر او بیګانه دِ له تا سره اوسي ۳۶ نه
له هغه نه مه سود اخله او مه نفع بلکه له خپل الله نه ووېرېږه چه
۳۷ تا سره خپل ورور ژوندي اوسِيُ ۳۷ هغه له خپلي روپیُ په سود مه ورکوه
۳۸ اوخپل طعام په نفع مه ورکوه ۳۸ زه خداوند ستاسو الله یم هغه چه
تاسو مِ دَ مصر له زمکي نه راویستلي يئِ دَدي دَپارَ چه تاسو له دَکنعان
زمکه درکړم چه ستاسو الله شم
۳۹ ۳۹ اوکه ستا ورور ستا په نزدي محتاج شِي او په تا خپل
۴۰ ځان خرڅ کړيُ نو دَ مریي دَخدمت په شان خدمت پرِ مه کوه ۴۰ دَ مزدور
یا دَ اوسیدونکِي په شان دِ تا څخه وِي دَ یوبیل دَ کالَ پورې دِ تا څخه
۴۱ خدمت کوي ۴۱ بیا دي او دَده اولاد ورسره ستا له خوا نه دِ ووځي او

خپلي خيلخانۍ ته دِ ور وګرزي او دَ خپلو پلارونو نيکونو مقبوضه ملک ته
دِ ور وګرزي ۴۲ ځکه چه دوي ځما مريونه دِي چه ما دَ مصر له زمکي نه ۴۲
را ويستلي دِي دَ مريونو په شان دِ خرڅ نه شِي ۴۳ په سختۍ سره پرِ ۴۳
حکم مه کوه بلکه له خپل الله نه وويرېږه ۴۴ او ستا هغه مريونه او وينځي ۴۴
دِ له هغو غير قومونو نه وِي چه هغوي چاپېر له تاسو نه دِي له هغوي نه
مريونه او وينځي اخلئِ ۴۵ او دَ مسافرو له ځامنو نه هم اخلئِ چه په تاسو ۴۵
کښې اوسِي او دَ هغوي له خيلخانو چه ستاسو په زمکه کښې پيدا شوِي دِي
دوي ستاسو مقبوضه دِي ۴۶ او تاسو دوي دَ دفتر په شان ساتئِ چه پس ۴۶
له تاسو ستاسو دَ اولاد مقبوضه وِي هميشه ئې تاسو مريونه کوئِ او هر
چه ستاسو بني اسرائيل ورونړه دِي نو هيڅ سړي دِ په سختۍ سره يو په
بل حکم نه کوِي

۴۷ او که مسافر يا تاځخه اوسېدونکي دولتمند شه او ستا ورور ۴۷
دَ هغه په نزدې محتاج شه او په هغه مسافر يا چه تا ځخه اوسي خرڅ
کړي شه يا دَ مسافر دَ خيلخانۍ په اولاد خرڅ کړي شه ۴۸ نو پس دَ ۴۸
هغه له خرڅولو نه دَ هغه خلاصول شته دي يو له خپلو ورونړو نه
دِ ئې خلاص کړِي ۴۹ يا دِ ئې خپل تره يا دِ ئې خپل تربور خلاص کړي يا ۴۹
دِ ئې يو دَده له خيلخانۍ نه دَده له باقي خپلوانو دِ ئې خلاص کړِي يا که
ئې لاس ورسيد نو ځان دِ پخپله خلاص کړِي ۵۰ نو دَده دَ خرڅولو له کال ۵۰
نه دَ يوبيل دَ کالَ پورې هغه دَده اخستونکي دِ شمار وکړِي نو دَده دَ
خرڅولو قيمت به دَ کالونو دَ شمار په برابر وِي دَ مزدور دَ ورځو په شان
به ده ځخه وِي ۵۱ او که ډېر کالَ پاتي شه نو دَ هغو کالونو په قدر دِ دَ ۵۱
ده دَ اخستلو له قيمتَ دَده دَ خلاصولو بيعَ دِ ورکړِي ۵۲ او که لږ کالونه ۵۲
دَ يوبيل دَ کالَ پورې پاتي شه نو دَده سره دِ وشمارِي او دَ هغه دَ کالونو
په قدر دِ دَ خپلو خلاصولو بيه بيرته ورکړِي ۵۳ ده ځخه دِ لکه مزدور له ۵۳
يو کالَ تر بلَ کالَ پورې وِي ستا دَ سترګو دَ وړاندِ دِ په سختۍ سره په ده

۵۴ باندِ حکم نه کړي ۵۴ او که په دغو کښې خلاص نه کړي شه نو دَ يوبيل په
۵۵ کال کښې به دي او دَ ده ځامن ورسره ووځي ۵۵ ځکه چه بني اسرائيل ځما مريونه
دي دوي ځما هغه مريونه دي چه ما دَ مصر له زمکي را وکښلي دي زه خداوند
ستاسو الله يم ✣

# شپږويشتم باب

۱ آ حپلو ځانونو له بتان مه جوړويِ او تراشلي شوي څېري او مُناره ځانونو
ته مه ودروِيِ او په خپله زمکه کښې صورتدار کاڼي مه مقرّرويِ چه تاسو
۲ به ورته سجده کويِ ځکه چه زه خداوند ستاسو الله يم ۲ تاسو ځما سبتونه
۳ ساتيِ او ځما دَ مُتقدّس مکان نه ويره کويِ زه خداوند يم ۳ که تاسو ځما په
۴ حکمونو باندِ ځئ او ځما فرائض ساتيِ او عمل پرِ کويِ ۴ نو زه به تاسو له بارانونه
به خپل وقت کښې درکړم او زمکه به تاسو له خپل حاصل درکړي او دَ
۵ ميدان وَنې به خپلې ميوي درکړي ۵ غوبلونه ستا به انګورو اخوَلو ته رسيږي
او انګور اخوَل ستاسو به کرلو ته رسيږي نو په مړه ګېډه به ډوډيِ خوريِ
۶ او په خپله زمکه کښې به په امان اوسيِ ۶ او زه به ستاسو په زمکه کښې
سلامتيا به درکړم نو تاسو به څمليِ او څوک به نه وي چه تاسو وويروي او
ماتونکي ځناور به له زمکي نه هلاک کړم او تُوره به ستاسو په زمکه کښې
۷ نه تيريږي ۷ او دښمنان خپل به وزغلويِ نو په تورو به ستاسو دَ وړاندِ
۸ پريوځي ۸ ستاسو پنځه تنَ به سل وزغلوي او سل ستاسو به لس زره
۹ وزغلوي او دښمنان ستاسو به ستاسو دَ وړاندِ په تورو پريوځي ۹ او
زه به تاسو ته نظر کوم او تاسو به نفع مند کړم او تاسو به ډير کړم او
۱۰ خپل عهد به تاسو سره پوره کړم ۱۰ نو زړه غله به خوريِ او زړه به دَ نوي
۱۱ له سببَ وباسيِ ۱۱ او مسکن خپل به ستاسو په مېنځ کښې ودروم او ځما
۱۲ نفس به له تاسو نه کرکه نه کوي ۱۲ او ستاسو په مېنځ کښې به ګرزم او
۱۳ زه به ستاسو الله شم او تاسو به ځما امّت شيِ ۱۳ زه خداوند ستاسو الله
يم هغه چه تاسو مِ دَ مصر له زمکي نه را وکښلئ چه تاسو دَ هغو مريونه

نه شئِ او څغونډې ستاسو له جغونو مِ مات کړل او په ولاړي مِ روان کړئ
۱۴ لیکن که تاسو ما ته غوږ نه نیسئ او په دي ټولو حکمونو عمل نه کوئ ۱۵ او که تاسو ۱۴ ۱۵
قانونونه پریږدئ او که تاسو فرائض سپک وګڼئ نو تاسو به ټولو حکمونو عمل
نه کوئ بلکه تاسو عهد ماتوئ ۱۶ نو زه به تاسو سره هم داسي وکړم چه ویره ۱۶
او سِل او شیبره به په تاسو مقرّر کړم چه ستاسو سترګي ړندي کړي او
تاسو وکړوي او تخمونه مو بې فایدي کړي نو ستاسو دښمنان به یې وخوري
۱۷ او له تاسو نه به خپل مخ وګرزوم نو تاسو به دَ دښمنانو دَ وړاندِ مات شئ ۱۷
او چه تاسو نه دښمنان ګڼرئ هغوي به په تاسو حکم کوي او تښتئ به او هیڅوک
به تاسو نه زغلوي ۱۸ او که تاسو سره دَ دي تاسو نه آوریٔ نو ستاسو سزا به ۱۸
اووه چندَ ستاسو دَ خطاؤ په برابر زیاته کړم ۱۹ لویي دَ طاقت ستاسو به ماته ۱۹
کړم ستاسو آسمان به دَ اُسپني په شان کړم او ستاسو زمکه به دَ تامبي په
شان کړم ۲۰ نو ستاسو قوّت به بې فایدي ختم کړي شي او ستاسو زمکه به خپل ۲۰
حاصل در نه کړي او دَ زمکي وُني به خپلي میوي در نه کړي ۲۱ که تاسو ما سره ۲۱
په خلاف ځئ او ما ته نه آورئ نو په تاسو به اووه چندَ بلا ستاسو دَ خطاؤ په
برابر زیاتي کړم ۲۲ دَ ځنګل ځناور به په تاسو در ولیږم چه ستاسو ځامن در نه ۲۲
وُشکوي او څاروي به ستاسو هلاک کاندِ او تاسو به کم کړي نو ستاسو لاري به
شاړي شي ۲۳ او که په دغه سره هم ما له سم نه کړي شئ بلکه ما سره په ۲۳
خلاف ځئ ۲۴ او زه به هم تاسو سره په خلاف ځم او اووه ځله به زه تاسو په ۲۴
برابر دَ خطاؤ ستاسو ووهم ۲۵ او په تاسو باندِ به توره وکاږم چه ما دَ ۲۵
عهد بدل اخلي نو تاسو به په خپلو ښهرونو کښ ته جمع کړي شئ او په مینځ
کښ ستاسو به وبا در ولیږم او دَ دښمنانو په لاس به وسپارلي شئ ۲۶ او ۲۶
چه ستاسو دَ ډوډئ همسا ماته کړم نو لس ښځي به په یو تنور کښ ستاسو
ډوډئ پخوي او په تول به ستاسو ډوډئ درکوي او تاسو به یې خورئ او
مړیږئ به نه
۲۷ او که سره دَ دي تاسو ما نه آورئ بلکه ما سره په خلاف ځئ ۲۷

٢٨ ٢٨ نو زه به هم په قهر له تاسو سره په خلاف ځم او تاسو له به ستاسو دَ
٢٩ خطاؤ په برابر اووه څله سزا درکړم ٢٩ نو تاسو به دَ خپلو ځامنو غوښې
٣٠ وخورئ او تاسو به دَ خپلو لونړو غوښې وخورئ ٣٠ او ستاسو لوړځايونه به
ونړوم او ستاسو دَ نمر دَ عبادت بتان به مات کړم او ستاسو تنې به دَ بتانو
٣١ په تنو باندې واچوم او ځما نفس به له تاسو نه کرکه وکړي ٣١ او ستاسو ښهرونه
به وران کړم او ستاسو مُقدّس مکانونه به شاړ کړم او ستاسو خوشبوئې به بوي
٣٢ نه کړم ٣٢ او زمکه به شاړه کړم نو ستاسو دښمنان چه په دې کښې اوسي له دې
٣٣ نه به حيران شي ٣٣ او تاسو به په غير قومونو کښې ښواره واره کړم او توره به
په تاسو پسې وباسم او زمکه به ستاسو شاړه شي او ښهرونه به ستاسو
٣٤ وران شي ٣٤ زمکه به خوشحاله شي په خپلو سبتونو په ټولو ورځو دَ شاړ
کيدلو خپلو کښې او چه تاسو دَ دښمنانو په زمکه کښې شئ زمکه به آرام
٣٥ وکړي او له خپلو سبتونو نه به خوشحالي ومومي ٣٥ ټولې ورځې دَ شاړ کيدلو
سبت به کوي هغه وقت چه ئې سبت نه دې کړي ستاسو په سبتونو کښې
٣٦ هر کله چه تاسو په کښې اوسيدلئ ٣٦ او هغه چه له تاسو نه دَ دښمنانو
په زمکه کښې باقي پاتې شوي دي دَ هغو په زړونو کښې به ويره وغورزوم بو
دَ ړپيدونکې پاڼې له آواز نه به تښتي نو دوي به داسې تښتي چه لکه له تورې
٣٧ څوک تښتي او دوي به پريوځي او زغلوونکې به څوک نه وي ٣٧ او يو په بل به
سره پريوځي لکه چه څوک دَ تورو دَ وړاندې وي او زغلوونکې څوک نه وي او
٣٨ تاسو به دَ دښمنانو دَ وړاندې ودريدلې نه شئ ٣٨ نو دَ غير قومونو په مينځ کښې
٣٩ به تاسو هلاک شئ او ستاسو دَ دښمنانو زمکه به تاسو وخورئ ٣٩ او باقي
له تاسو نه به دَ خپلو ګناهونو په سبب ستاسو دَ دښمنانو په زمکه کښې
کړيږي او هم داسې ورسره دَ خپلو پلرونو دَ نيکونو دَ ګناهونو په سبب به کړيږي
٤٠ ٤٠ او که دوي دَ خپلو ګناهونو او دَ خپلو پلرونو نيکونو په ګناهونو دَ خپلو خيانتونو
سره چه دوي ځما سره خيانت کړي دي او هغه چه دوي ځما سره په خلاف
٤١ تللي دي اقرار وکړي ٤١ زه هم دَ دوي سره په خلاف تللې يم او دوي م دَ دوي

دَ دښمنانو زمکي له بيولِي دِي نو که دغه دَ دوي نامختون زړونه عاجز کړي
۴۲ شِي او په دغه وقت کښ دَ خپلو گناهونو په سزا رضا شِي ۴۲ نو زه به خپل
عهد دَ يعقوب سره او خپل عهد هم دَ اسحاق سره او هغه خپل عهد
۴۳ دَ ابراهام سره ياد کړم او هغه زمکه به هم ياده کړم ۴۳ او هغه زمکه چه
له دوي نه په شاړکيدلو خپلي کښ ئي بي له هغه نه خپل سبتونه ئي پوره
کړل او دوي دَ خپلو گناهونو په سزا رضا شول ځکه چه دوي ځما له فرائضو
۴۴ نه منع کړي وه او دَ دوي ځما حکمونه پرينبودلي وُو ۴۴ او سره دَ دي هم
داسي ترځو چه دوي دَ خپلو دښمنانو په زمکه کښ وِي زه به دوي ونه شړم
او نه به له دوي نه بده کړکه وکړم چه کوندِ هلاک به ئي کړم او خپل عهد
۴۵ به ورسره مات کړم ځکه چه زه خداوند الله دَ دوي يم ۴۵ دَ دوي دَ پلرونو
نيکونو عهد دَ دوي دَ پاره يادوم هغه چه دَ قومونو دَ سترګو دَ وړاندِ م هغوي
دَ مصر له زمکي نه را وکښلي دِي چه زه دَ هغو الله شم زه خداوند يم
۴۶ ۴۶ دا هغه حکمونه او فرائض او شريعتونه دِي چه خداوند دَ خپل ځان
او دَ بني اسرائيلو په مينځ کښ دَ سينا په غره کښ دَ موسیٰ په لاس مقرر
کړي دِي ✣

# اووه ويشتم باب

۱ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۲ بني اسرائيلو سره خبري
۲ وکړه او ورته ووايه چه که څوک سړي خاص نذر مقرر کړي نو سړي به
۳ خداوند له وِي موافق ستا دَ قيمت سره ۳ نو که قيمت مقرر کول دَ نارينه
وِي نو دَ شلو کالو نه دَ شپيتهٔ کالو پوري قيمت مقررول دِ پنځوس مثقاله
۴ سپين زر دَ مقدس په مثقال وِي ۴ او که ښځه وِي نو قيمت مقررول دِ ديرش
۵ مثقاله وِي ۵ او که له پنځهٔ کالو نه دَ شلو کالو پوري وِي نو قيمت مقررول به دَ
۶ نارينه شل مثقاله وِي او دَ ښځي دَ پاره لس مثقاله ۶ او که دَ يوي مياشتي
وِي دَ پنځهٔ کالو پوري نو قيمت مقررول دِ دَ نارينه پنځه مثقاله سپين زر وِي
۷ او دَ ښځي دَ پاره قيمت مقررول دري مثقاله سره زر به وِي ۷ او که دَ شپيتهٔ

کالو او دَ پاسَ وه نوکه نارینه وِي نو قیمت مقرّرول دِ پنځلس مثقالَ
۸ وِي او دَ ښځې دَپارَ دِ لس مثقالَ وِي ۸ او که له قیمت مقرّرولو نه
مسکین وِي نو دَ کوهین دَ وړاندِ دِ يُ ودرولي شي نو کوهین دِ دَ هغه
قیمت مقرّر کړِي هغه قدر چه دَ نذر کوونکي لاس رسیږي نو کوهین دِ هغه
قدر قیمت مقرر کړِي
۹ ۹ او که هغه څاروي وِي چه خلق له هغه نه دَ خداوند دَپارَ قرباني
۱۰ کوِي نو هرڅه چه له هغه نه دَ خداوند دَپارَ ورکړِي هغه به پاک وِي ۱۰ په
بل شان دِ يُ نه کوِي او ښه په ناکاره او ناکاره په ښه دِ نه بدلوِي او
که څاروي يُ په څاروِي بدل کړ نو هغه اودَ هغه بدل به دواړه پاک
۱۱ وِي ۱۱ او که څاروِي پلیت وِي له هغه قسمَ چه يُ دَ خداوند دَپارَ نه قرباني
۱۲ کوِي نو هغه څاروي دِ دَ کوهین دَ وړاندِ ودروِي ۱۲ نو کوهین دِ يُ قیمت
کړِي که ښه وِي او که ناکاره وِي نو دَ کوهین دَ قیمت سره برابر هم دغه شان
۱۳ دِ وِي ۱۳ او که يُ خلاصوِي نو پنځمه حصه دَ هغه دِ ستاسو په قیمت
مقرّرولو زیاته کړِي
۱۴ ۱۴ او که سړِي خپل کور دَ خداوند دَ پاکیدلو دَپارَ مقدّس کړ نو کوهین
دِ دَ هغه قیمت مقرّر کړِي چه ښه وِي او که ناکارَ وِي او چه څنګه يُ
۱۵ کوهین قیمت مقرر کړِي هم هغه شان به قایم شي ۱۵ او که مُقدّس کوونکي
بیا خپل کور خلاصوِي نو له قیمت مقرّرولو نه دِ پنځمه حصّه سپین زر به
۱۶ هغه باندِ زیات کړِي نو هغه دَ هغه شي ۱۶ او که سړي دَ خپل مقبوضه
پټي نه څه دَ خداوند دَپارَ مُقَدَّس کړِي نو قیمت مقرّرول به په قدر دَ تخم
۱۷ دَ هغه وِي دَ وربوشو دَ تخم حُمَر به په پنځوسو مثقالو سپینو زرو وِي ۱۷ که
خپل پټي يُ دَ یوبیل له کالَ مُقَدَّس کړ نو ستاسو دَ قیمت مقرّرولو سره
۱۸ دِ برابر قایم شي ۱۸ او که خپل پټي يُ پس دَ یوبیل له کالَ مُقَدَّس کړ
نو کوهین دِ دَ هغه دَپارَ دَ باقي کالونو په قدر دَ یوبیل ترکالَ پورِي سپین
۱۹ زر حسابوِي نو ستا له قیمت مقرّرولو نه دِ کم کړِي شي ۱۹ او که هغه مُقدّس

کونکي خپل پټي خلاص کړ نو سناسو له قيمت مقرّرولو نه دِ پنځمه
حصه دَ روپو دِ په هغه باندِ زيات کړي نو دَ هغه دَپارَ به قايم شي
٢٠ ليکن که خپل پټي يُ خلاص نه کړ او دَده پټي په بل سړي خرڅ ٢٠
کړي شه نو پس له هغه به خلاص نه کړي شي ٢١ بلکه هغه پټي چه ٢١
دَ يوبيل په کال کښ خلاص شي دَ حرم دَ پټي په شان دَ خداوند دَپارَ
به مقدّس وي او هغه به دَ کوهين مقبوضه شي ٢٢ او که يو پټي چه ٢٢
په بيع يُ اخستي وي او دَده دَ مقبوضي له پټو نه وي او دَ خداوند دَپارَ
يُ مقدس کړي ٢٣ نو کوهين دِ دَ هغه دَپارَ دَ قيمت مقررولو په برابر ٢٣
دَ يوبيل دَ کالَ پوري حساب وکړي نو هغه مقرّر کړي قيمت دِ په دغه ورځ
ورکړي چه دَ خداوند دَپارَ پاک شي ٢٤ او دَ يوبيل په کال کښ دِ پټي هغه ٢٤
ته ور وگرزوي چه له چا نه اخستي شوي دي هغه ته چه دَ زمکي مقبوضه
دَ هغه وه ٢٥ او ټول قيمتونه مقررول دِ دَ مُقَدَّس په مثقال وي شل ٢٥
جيراه دَ يو مثقال دي

٢٦ فقط ورمزين دَ څارويو نه چه دَ خداوند دَپارَ ورمزين کړي ٢٦
شوي دي هيڅوک دِ يُ مُقَدَّس نه کړي که غوايه او که مږ وي نو هغه دَ
خداوند دي ٢٧ او که له پليتو څاروو نه وي نو سناسو دَ قيمت مقرّرولو ٢٧
سره دِ برابر دَ هغه فديه ورکړي او پنځمه حصه دَ هغه دِ پرِ زياته کړي
او که په خلاص نه کړي شه نو سناسو دَ قيمت مقرّرولو سره دِ برابر خرڅ کړي
شي ٢٨ ليکن هر حرم کړي شوي څيز چه سړي يُ له خپلَ مالَ دَ خداوند دَپارَ حرم ٢٨
کوي که له سړو نه وي که له څاروؤ نه وي که دَ خپلي مقبوضي پټي نه وي
نو هغه دِ خرڅولي نه شي او نه به خلاصولي شي څکه چه هر حرم کړي شوي
څيز دَ خداوند دَپارَ هغه پاک له پاکو دي ٢٩ هر حرم کړي شوي چه له سړو ٢٩
نه حرم کړي شي هغه دِ په فديه خلاص نه کړي شي څواه دِ ووژلي شي
٣٠ دَ زمکي ټول عشر که دَ زمکي له دانو نه وي او که دَ ونو له ٣٠
ميوؤ نه وي هغه دَ خداوند دَپارَ دي او دَ خداوند دَپارَ مُقَدَّس دي ٣١ او که ٣١

سږي څه له خپل عشرَ خلاص کړي نو پنځمه حصه دَ هغه دِ پرِ زياته
۳۲ کړي ۳۲ او ټول عشرونه دَ غوايه او دَ کنډوکونو چه هرڅه دَ همسا دَ لاندِ
۳۳ تيرېږي لسمه حصه به دَ خداوند دَپارَ مقدسه وِي ۳۳ تفحص دِ نه کوِي
چه دا ښه دي او که ناکاره دي او نه دِ يې بدلوِي او که بدل يُې کړ نو هغه
۳۴ او بدل دَ هغه به پاک وِي هغه به خلاص نکړي شِي ۳۴ دا هغه حکمونه
دِي چه خداوند موسىٰ ته دَ بنِي‌اسرائيلو دَپارَ دَ سينا په غره کښ حکم
کړي وه *

# شمار

## يعني څلورم كتاب دَ حضرت مُوسىٰ

## اوّل باب

۱ او خداوند دَ مُوسىٰ سره دَ دوي دَ مصر له زمكي نه دَ وتلو دَ دويم كال دَ ۱
دويمي مياشتي په ومبي ورځ دَ سِينا په بيابان كښ دَ جماعت په خيمي كښ
خبري وكړي و ئي ويل چه ۲ دَ بني‌اسرائيلو ټول جماعت موافق دَ هغو دَ خيلخانو ۲
او دَ پلرونو دَ خاندانو په شمار دَ نومونو دَ هغو ټول نارينه په خپلو سرونو
وشماره ۳ دَ شلو كالو او پورته ټول چه په لښكر وزي په اسرائيلو كښ ۳
ته او هارون ئي دَ هغو دَ لښكرو په شان حساب كړئ ۴ او تاسو دواړو ۴
سره دِ دَ هري فرقي يَو سړي وِي هسي سړي چه هغه دَ خپلو پلرونو دَ خاندان
سردار وِي ۵ او نومونه دَ هغو سړو چه به له تاسو سره ودريږي دادِي دَ ۵
رؤبين نه اليصُور دَ شديئور ځوي ۶ دَ شمعون نه شلومِيئيل دَ صُورِ يشدّاي ۶
ځوي ۷ دَ يهُودا نه نحشُون دَ عميناداب ځوي ۸ دَ يسّاكار نه نتنائيل دَ صُوعار ۷ ۸
ځوي ۹ دَ زبُولُن نه اَلياب دَ حِيلُون زوي ۱۰ دَ بني‌يوسف دَ افرايم نه اليشاماع ۹ ۱۰
دَ عميهود زوي او دَ منسّي نه جمليئيل دَ فداهصُور ځوي ۱۱ دَ بنيامين نه ۱۱
ابيدان دَ جدعوني ځوي ۱۲ دَ دان نه اخيعزر دَ عميشدّاي ځوي ۱۳ دَ اشير ۱۲ ۱۳
نه فجعئيل دَ عكران ځوي ۱۴ دَ جاذ نه اَلياساف دَ دعوئيل ځوي ۱۵ دَ نفتالي ۱۴ ۱۵
نه اَخيرع دَ عينان ځوي ۱۶ دوی دَ جماعت بللي شوي دِي چه دَ خپلو پلرونو ۱۶
دَ فرقو مشران دِي دَ زركونو بني‌اسرائيلو سرداران دِي ۱۷ نو مُوسىٰ او هارون ۱۷
هغه سړي واخستل هغه چه مقرّر كړي شوي وُو په خپلو نومونو سره۔
۱۸ او ټول جماعت ئي دَ دويمي مياشتي په اوّل ورځ جمع كړ نو دَ خپلو ۱۸
خيلخانو او دَ خپلو پلرونو دَ كورونو په شمار ئي دَ هغو دَ نومونو نسب‌نامه
وكړه دَ شلو كالو او پورته موافق دَ هغو دَ سرونو سره ۱۹ لكه چه خداوند ۱۹
مُوسىٰ ته حكم كړي وه نو هغوي ئي دَ سِينا په بيابان كښ وشمارل

۲۰ ۲۰ نو بني رُوبِين هغه چه دَ اسرائيل ورنبَي ځوي وه نسب‌نامه دَ هغو
په موافق دَ خيلخانو دَ هغو او دَ خاندانو دَ پلرونو دَ هغو په شمار
دَ نُومونو دَ هغو موافق دَ هغو دَ سرونو سره ټول نارينه دَ شلو کالو
۲۱ او پورته ټول چه دَ لښکر دَپارَ وتونکي وُو ۲۱ هغه شمار کړي شوي له فرقي
دَ روبِين نه شپږ څلوېښت زرَ او پنځه سوَ وُو
۲۲ ۲۲ دَ بنِي شمعُون نسب‌نامه دَ خپلو خيلخانو او دَ خپلو پلرونو دَ خاندانو
په شان چه شمار کړي شوي وُو په نُومونو دَ خپلو سرونو ټول نارينه
۲۳ دَ شلو کالو او پورته ټول چه دَ جنګ دَپارَ وتونکي وُو ۲۳ شمار کړي شوي
له فرقي دَ بني شمعون نه پنځوس زرَ او دري سوَ وُو
۲۴ ۲۴ د بني جاد نسب‌نامه موافقه دَ هغو دَ خيلخانو او دَ خاندانو دَ
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نُومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته ټول چه دَ
۲۵ جنګ دَپارَ وتونکي وُو ۲۵ شمار کړي شوي له هغو نه دَ جاد فرقه پنځه‌څلوېښت
زرَ او شپږ سوَ او پنځوس وُو
۲۶ ۲۶ دَ بني يهُودا نسب‌نامه موافقه دَ هغو دَ خيلخانو او دَ خاندانو دَ
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته ټول چه دَ
۲۷ جنګ دَپارَ وتونکي وُو ۲۷ شمار کړي شوي له هغو نه دَ يهُودا فرقه څلور
اويا زرَ او شپږ سوَ وُو
۲۸ ۲۸ دَ بني يسّاکار نسب‌نامه موافقه دَ هغو دَ خيلخانو او دَ خاندانو
دَ پلرونو دَ هغو په شمار دَ نُومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته ټول
۲۹ چه دَ جنګ دَپارَ وتونکي وُو ۲۹ شمار کړي شوي له هغو نه دَ يسّاکار
فرقه څلور پنځوس زرَ او څلور سوَ وُو
۳۰ ۳۰ دَ بني زبُولُن نسب‌نامه موافقه دَ هغو دَ خيلخانو او دَ خاندانو دَ
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نُومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته ټول چه دَ
۳۱ جنګ دَپارَ وتونکي وُو ۳۱ شمار کړي شوي له هغو نه دَ زبُولُن فرقه اووه
پنځوس زرَ او څلور سوَ وُو

۳۲ دَ بني یُوسف دَ بني افرایم نسب نامه موافقه دَ هغو دَ خیلخانو او ۳۲
دَ خاندانو دَ پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته
تول چه دَ جنگ دَپارَ وتونکي وُو ۳۳ شمار کړي شوِي له هغو نه دَ افرایم ۳۳
فرقه څلویښت زرَ پنځه سوَ وُو

۳۴ دَ بني مَنَسّي نسب نامه موافقه دَ هغو دَ خیلخانو او دَ خاندانو دَ ۳۴
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته تول چه دَ
جنگ دَپارَ وتونکي وُو ۳۵ شمار کړي شوِي له هغو نه دَ مَنَسّي فرقه دودیرش ۳۵
زرَ دوه سوَ وُو

۳۶ دَ بني بنیامین نسب نامه موافقه دَ هغو دَ خیلخانو او دَ خاندانو دَ ۳۶
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته تول چه دَ
جنگ دَپارَ وتونکي وُو ۳۷ شمار کړي شوِي له هغو نه دَ بِنیامِین فرقه پنځه دیرش ۳۷
زرَ او څلور سوَ وُو

۳۸ دَ بني دان نسب نامه موافقه دَ هغو دَ خیلخانو او دَ خاندانو دَ ۳۸
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته تول چه
دَ جنگ دَپارَ وتونکي وُو ۳۹ شمار کړي شوِي له هغو نه دَ دان فرقه دوشپیته ۳۹
زرَ او اوه سوَ وُو

۴۰ دَ بني اشیر نسب نامه موافقه دَ هغو دَ خیلخانو او دَ خاندانو دَ ۴۰
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته چه دَ
جنگ دَپارَ وتونکي وُو ۴۱ شمار کړي شوِي له هغو نه دَ اشیر فرقه یوڅلویښت ۴۱
زرَ پنځه سوَ وُو

۴۲ دَ بني نفتالي نسب نامه موافقه دَ هغو دَ خیلخانو او دَ خاندانو دَ ۴۲
پلرونو دَ هغو په شمار دَ نومونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته تول چه دَ
جنگ دَپارَ وتونکي وُو ۴۳ شمار کړي شوِي له هغو نه دَ نفتالي فرقه ۴۳
دري پنځوس زرَ او څلور سوَ وُو

۴۴ دغه شمار کړي شوِي هغه وُو چه هغوي مُوسیٰ او هارون شمارلي ۴۴

وُو او مشران دَ بني‌اسرائیلو دولس سړي وُو یَو یَو سړي دَ خپلو پلرونو دَ
۴۵ خاندان وه ۴۵ نو هغه ټول شمارلي شوي له بني اسرائیلونه موافق دَ خاندانو
دَ پلرونو دَ هغو دَ شلو کالو او پورته ټول چه دَ جنګ دَ پارَ وتونکي په
۴۶ بني‌اسرائیلو کښ وُو ۴۶ هغه ټول شمارلي شوي شپږ لک او دري زرَ او پنځه
۴۷ سوَ او پنځوس وُو ۴۷ لیکن لاوِیان موافق دَ اولادَ دَ پلرونو دَ هغو هغه
۴۸ دَدوي په مینځ کښ و نه شمارلي شول ۴۸ ځکه چه خداوند دَ مُوسیٰ سره خبري
۴۹ کړي وي و ئې ویل چه ۴۹ فقط دَ لاوِي فرقه مه شماره او په بني‌اسرائیلو
۵۰ کښ ئې مه حسابوَه ۵۰ بلکه لاوِیان دَ شهادة په مَسکن او دَ هغه په ټولو
لوښو او دَ هغه په ټول مال مقرّر کړه دوي به مسکن او ټول لوښي دَ
هغه باروِي او دوي به ئې خدمت کوِي او له مسکن نه ګیرچاپیر به ډیره
۵۱ کیږي ۵۱ نو دَ مسکن دَ کوچ په وقت کښ لاوِیان به ئې کوزوِي او دَ مسکن
دَ ډیره کیدلو په وقت کښ لاوِیان به ئې ودروِي او هر هغه چه پردي سړي
۵۲ چه ورنزدي شي نو وبه وژلي شي ۵۲ او بني‌اسرائیل به ډیره کیږي هر سړي
۵۳ په خپلي ډیري کښ او هر سړي خپلي جنډي ځخه په خپل فوځ کښ ۵۳ لیکن
لاوِیان به دَ شهادة له مسکن نه ګیرچاپیر ډیره کیږي چه دَ بني‌اسرائیلو
په جماعت باندِ غضب نازل نه شي نو لاوِیان دِ دَ شهادة دَ مسکن ساتنه
۵۴ کوِي ۵۴ نو هرڅه حکم چه خداوند مُوسیٰ ته کړي وه بني‌اسرائیلو موافق
دَ هغه وکړل هم هغه شان ئې وکړل +

## دویم باب

۱ ۲ ۱ بیا خداوند دَ مُوسیٰ او دَ هارون سره خبري وکړي و ئې ویل چه ۲ بني‌اسرائیل
دِ هر سړي خپل نشان ځخه دَ خپلو پلرونو دَ خاندانو له جنډي سره ډیره
۳ کیږي دَ جماعت خیمي ته مخامخ دِ ګیر چاپیر له هغي نه ډیره کیږي ۳ نو نمرخاته
ته ډیره کیدونکي دِ په طرف دَ نمرخاته دِ نِشان دَ ډیري دَ یَهُوداه موافق دَ
فوځ دَ هغو سره وِي او سردار دَ بني یَهُوداه نحشون دَ عمیناداب ځوي -
۴ ۴ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړي شوي له هغو نه څلور اویا زرَ او شپږ

٥ سوَ ٥ او دَ هغه سره ډيره کيدونکي دَ يَسّاکار فرقه او دَ بنيِ يَسّاکار سردار
٦ نَتنائيل دَ صُوغار ځوي ٦ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړِي شوِي له
٧ هغو نه څلور پنځوس زرَ او څلور سوَ ٧ او پس له هغه فرقه دَ زَبُولُن
٨ او دَ بنيِ زبُولُنو سردار اَلياب دَ حِيلون ځوي ٨ او دَ هغه فوځ هغه
٩ شمار کړِي شوِي له هغو نه اووه پنځوس زرَ او څلور سوَ ٩ ټول شمار کړِي
شوِي دَ يَهُودا دَ ډيري يوَ لک او شپږ اتيا زرَ او څلور سوَ دَ هغو دَ لښکرو
١٠ سره هغوي به ورُمبيَ کوچ کوِي ١٠ دَ روبين دَ ډيري نشان به موافق دَ
فوځ دَ هغو سره په سُهيل طرف دَ بنيِ روبينو سردار اَليصُور دَ شديئُور
١١ ځوي ١١ او فوځ دَ هغه شمار کړِي شوِي له هغو نه شپږ څلويښت زرَ او پنځه
١٢ سوَ ١٢ او دَ هغه سره ډيره کيدونکي دَ شَمعُون فرقه وه او دَ بنيِ شَمعُونو سردار
١٣ شلومِيئِيل دَ صُورِيشدّاي ځوي ١٣ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړِي شوِي له
١٤ هغو نه نه پنځوس زرَ او دري سوَ ١٤ او دَ جاد فرقه او دَ بنيِ جادو سردار
١٥ اَلياساف دَ رَعُوئيل ځوي ١٥ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړِي شوِي له
١٦ هغو نه پنځه څلويښت زرَ او شپږ سوَ او پنځوس ١٦ ټول شمار کړِي شوِي دَ
روبين دَ ډيري يوَ لک او يوَ پنځوس زرَ او څلور سوَ او پنځوس دَ هغو
له فوځ سره دُوَ هغوي به دويم کوچ کوِي
١٧ ١٧ پس له هغه به دَ جماعت خيمه دَ لاوِيانو دَ ډيري په مينځ دَ
ډيرِي کښ کوچ وکړِي لکه چه څنګه ډيره کيږِي هم هغه شان به کوچ کوِي
هر سړي دِ په خپل خپل ځاي کښ دَ خپلو نشانونو سره وِي
١٨ ١٨ دَ اِفرائيمو دَ ډيري نشان به موافق دَ فوځ دَ هغو سره په نمرپريواته
طرف وِي او دَ بنيِ افرائيمو سردار به اَليشاماع دَ عَميهُود ځوي وِي -
١٩ ١٩ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړِي شوِي له هغو نه څلويښت زرَ او پنځه
٢٠ سوَ وُو ٢٠ او ورسره دَ مَنَسّي فرقه او دَ بنيِ مَنَسيانو سردار جَملِئيل
٢١ دَ فِداهِصُور ځوي وه ٢١ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړِي شوِي له هغو نه
٢٢ دوديرش زرَ او دوه سوَ وُو ٢٢ او دَ بِنيامِين فرقه او دَ بنيِ بنيامينو سردار

۲۳ ابيدان دَ جدعوني ځوي وه ۲۳ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړي شوي له
۲۴ هغو نه پنځه ديرش زرَ او څلور سوَ وُو ۲۴ ټول شمار کړي شوي دَ
اِفرايم د ډيري يو لکَ او اته زرَ او سل دَ هغو دَ فوځ سره وُو هغوي
به دريم کوچ کوي
۲۵ ۲۵ دَ دان دَ ډيري نشان به موافق دَ فوځ دَ هغو سره په قُطب طرف
۲۶ وي او دَ بني‌دانو سردار به اَخِيعَزَر دَ عَمِيشدّاي ځوي وي ۲۶ او دَ هغه
۲۷ فوځ شمار کړي شوي له هغو نه دوشپيته زرَ او اووه سوَ وُو ۲۷ او دَ
هغه سره ډيره کيدونکي دَ آشير فرقه وه او دَ بني‌آشيرو سردار فَجعِيئيل
۲۸ دَ عکرُان ځوي وه ۲۸ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړي شوي له هغو نه يَوڅلويښت
۲۹ زرَ او پنځه سوَ وُو ۲۹ او دَ نَفتالي فرقه او دَ بني‌نَفتاليانو سردار اَخِيرَع
۳۰ دَ عِينان ځوي وه ۳۰ او دَ هغه فوځ هغه شمار کړي شوي له هغو نه
۳۱ دري پنځوس زرَ او څلور سوه وُو ۳۱ ټول شمار کړي شوي دَ دان دَ ډيري يو
لکَ او اووه پنځوس زرَ او شپږ سوَ وُو هغوي به دَ خپلو نشانونو سره
ورستي کوچ کوي
۳۲ ۳۲ دغه کسان وُو هغه شمار کړي شوي له بني‌اسرائيلو نه موافق
دَ خاندانو دَ پلرونو دَدوي ټول هغه شمار کړي شوي دَ ډيرو دَ ټولو
فوځونو دَ هغو سره شپږ لکَ او دري زرَ او پنځه سوَ او پنځوس وُو-
۳۳ ۳۳ ليکن لاوِيان په مينځ دَ بني‌اسرائيلو کښ نه وُو شمار کړي شوي لکه
۳۴ چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه ۳۴ نو موافق دَ هر هغه څه چه خداوند
موسیٰ نه په هغه سره حکم کړي وه بني‌اسرائيلو وکړل هم هغه شان
دَ نشانونو خپلو سره ډيره کيدل او هم هغه شان کوچيدل هر سړي
موافق دَ خپلو خيلخانو دَخپلو پلرونو دَ خاندان سره *

## دريم باب

۱ ۱ او دا ده نسب‌نامه دَ هارون او دَ موسیٰ په هغه ورځ کښ چه خداوند
۲ دَ موسیٰ سره دَ سِينا په غره کښ خبري وکړي ۲ او دَ هارون دَ ځامنو

نومونه دا دي وړنبي ځوي ناداب وه او ابيهو او اَليعازار او اِيثامار
۳ ۳ دا دَ هارون دَ کوهينانو ځامنو نومونه دي هغه چه ممسوح کړي
شوي دي هغه کسان چه لاسونه ئي دَ کوهينئ دَپارَ خاص کړي شوي
۴ دي ۴ ليکن ناداب او ابيهو په هغه وقت کښ دَ خداوند په حضور مړه
شول چه بيگانه اور ئي دَ خداوند په حضور دَ سِينا په بيابان کښ دوارو
قرباني کړ-او دَ هغو دوارو ځامن نه وُو-او اَليعازار او اِيثامار دوارو
دَ خپل پلار هارون دَ وړاند کوهينئ کوله
۵ ۵ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۶ دَ لاوي اولاد
۶ وړاندِ کړه او دَ هارون کوهين دَ وړاندِ ئي ودروه چه دَ هغه خدمت کوِي
۷ ۷ او دَ هغه امانت حفاظت دِ کوِي او دَ ټول جماعت دَ امانت دَ جماعت
۸ دَ خيمي دَ وړاندِ او دَ مسکن خدمت دِ کوِي ۸ نو دَ جماعت دَ خيمي ټول
اسباب دِ وساتي او دَ بني‌اسرائيلو ساتنه دِ کوِي او دَ مسکن خدمت دِ
۹ کوِي ۹ نو ته لاويان هارون او دَ هغه ځامنو له ورکړه ځکه چه دوي
۱۰ له بني‌اسرائيلو نه هغه ته خواه مخواه بخښلي شوِي دِي ۱۰ او هارون او دَ
هغه ځامن متقرر کړه چه کوهيني خپله ساتي او هر بيگانه سړي چه ورنزدي
کيږي هغه به ووژلي شي
۱۱ ۱۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۱۲ گوره ما له
۱۲ بني اسرائيلو نه په بدل دَ هغو ټولو وړنبو زَرځ پرانتونکو کښ ما لاويان
۱۳ واخستل نو لاويان دِ ځما دَپارَ وِي ۱۳ ځکه چه ټول وړنبي پيداکيدونکي ځما
دِي په هغه ورځ کښ چه ما دَ مصر په زمکه کښ ټول وړنبي پيدا شوِي
وهلي دِي نو ځان له م ټول وړنبي پيداکيدونکي په بني اسرائيلو کښ له سړو
او له ځاروو نه مُقَدَّس کړي دِي ځما دَپارَ دِ وِي زه خداوند يم
۱۴ ۱۴ او خداوند دَ موسیٰ سره دَ سِينا په بيابان کښ خبري وکړي و ئي
۱۵ ويل چه ۱۵ بني‌لاويان موافق دَ خاندانو دَ پلرونو دَدوي سره او دَ خيلخانو
دَدوي سره وشماره هر نارينه له مياشتي نه په پورته هلک دوي وشماره

١٦ ١٦ نو موسیٰ هغوي دَ خداوند دَ ويلو په موافق سره وشمارل لکه چه حکم
١٧ ورته کړي شوي وه ١٧ او دغه بني لاويان دَ خپلو نومونو سره وُو جِرشُون
١٨ او قهات او مراري ١٨ او دا دواړه دَ جِرشُون دَ دواړو خاصو نومونه
١٩ موافق دَ هغو دواړو دَ خيلخانو سره وُو لِبني او شِمعي ١٩ او بنو قهات موافق
٢٠ دَ خيلخانو خپلو سره عَمرام او يِضهار او حَبرون او عزيئيل وُو ٢٠ او دَ
بني مراري دواړه خاص موافق دَ هغو دواړو دَ خيلخانو سره محلي او موشي
وُو دا دي هغه خيلخانې دَ لاويانو موافقي دَ خاندانو دَ پلرونو دَ دوي سره
٢١ ٢١ دَ جِرشُون دَ لِبنيانو خيلخانه او خيلخانه دَ شمعيانو وه هم دا
٢٢ خيلخاني دَ جِرشونيانو دي ٢٢ هغه شمار کړي شوي له هغو نه په شمار
دَ هر نارينه دَ مياشتي او پورته هلک هغه شمار کړي شوي له هغو
٢٣ نه اووه زرَ او پنځه سوَ وُو ٢٣ دَ جِرشُونيانو خيلخانه دِ دَ ورستو دَ
٢٤ مسکن نمر پرېوانه خوا ته ډېره کيږي ٢٤ او دَ جِرشُونيانو دَ پلار دَ خاندان
٢٥ سردار دِ اِلياسف دَ لايل خوي وي ٢٥ او دَ جماعت په خيمه کښ مسکن
او خيمه او دَ هغې چت او دَ جماعت دَ خيمې دَ دروازي دَ پردي ساتنه دِ
٢٦ دَ بني جِرشُونو وي ٢٦ او پردي دَ غولي او دَ غولي دَ دروازي پردي
هغه چه چاپيره دَ مَسکن او دَ مذبح دي او طنابونه دَ هغې دِ دَ ټول
خدمت دَپارَ وي
٢٧ ٢٧ او دَ قهات دَ عَمرامیانو خيلخانه ده او خيلخانه دَ يِضهاريانو
او خيلخانه دَ حَبرونيانو او خيلخانه دَ عزيئيليانو هم دا خيلخاني دَ
٢٨ قهاتيانو دي ٢٨ په شمار دَ هر نارينه له مياشتي په پورته هلک اته زرَ
٢٩ شپږ سوَ ساتونکي دَ ساتني دَ قُدس وُو ٢٩ او دَ بني قُهاتو خيلخاني دِ
٣٠ دَ مسکن په سُهيل طرف باندِ ډېره کيږي ٣٠ او دَ قُهاتيانو دَ خيلخاني
٣١ دَ پلار دَ خاندان سردار دِ اِليصافان دَ عزيئيل خوي وي ٣١ او ساتنه
دَ هغو دِ دَ تابوت او دَ ميز او دَ ډيوټ او دَ دواړو مذبحو او دَ مقدس
دَ لوښو هغه چه دوي دَ هغو خدمت کوي او دَ پردي او هر خدمت

۳۲ دَ هغې دِ وِي ۳۳ او دَ لاوِیانو دَ سردارانو سردار اَلِعازار دَ هارون
۳۳ کوهِن خوي واکدار دَ ساتونکیو دَ ساتنې دَ قُدس به وِي ۳۳ او دَ مَرارِي
خیلخانه دَ مَحلِیانو او خیلخانه دَ موشِیانو وه هم دا خیلخانې دَ مراریانو
۳۴ دِي ۳۴ او شمار کړي شوِي له هغو نه په شمار دَ هر نارینه دَ میاشتې
۳۵ او پورته هلک شپږ زرَ او دوه سوَ وُو ۳۵ او دَ مراریانو دَ خیلخانې
دَ پلار دَ خاندان سردار دِ صُورِیئیل دَ ابیحایل خوي وِي دَ مسکن په قُطب
۳۶ طرف دِ ډیره کیږي ۳۶ او واکدارِي دَ ساتنې دَ بنِي‌مرارِي به دَ تختو دَ مسکن
او دَ اَرمِي دَ هغه او دَ ستنو دَ هغه او دَ چُورِ دَ موږو دَ هغه او دَ
۳۷ ټولو لوښو دَ هغه او دَ ټول خدمت دَ هغه وِي ۳۷ او دَ ستنو دَ غولِي چاپېره
له هغه نه او دَ چُوړِه دَ موږو دَ هغو او دَ میخُونو دَ هغو او دَ طنابونو
دَ هغو

۳۸ ۳۸ او دَ مسکن دَ وړاندِ نمرخاته ته ډیره کیدونکي دَ جماعت دَ خیمې
دَ وړاندِ دَ نمرختلو طرف ته هغوي مُوسیٰ او هارون او دَ هغه خامن به
وِي ساتونکِي دَ ساتنې دَ مَقدِس دَ ساتنې دَ بنِي‌اسرائیلو دَپارَ او هر بیګانه
سړي چه ورنژدي کیږي هغه به ووژلي شي

۳۹ ۳۹ ټول شمار کړي شوِي له لاوِیانو نه دَ خیلخانو دَ هغو سره هغه
چه مُوسیٰ او هارون دَ خداوند دَ حکم په شان شمارلي وُو ټول نارینه
دَ میاشتې او پورته هلک دوه وِیشت زرَ وُو

۴۰ ۴۰ او خداوند مُوسیٰ ته ووِیل چه ټول ورنبِي پیدا شوِي نر له
بنِي‌اسرائیلو نه دَ میاشتې او پورته وشماره او شمار دَ نومونو دَ
۴۱ هغو واخله ۴۱ نو لاوِیان څما دَپارَ واخله زه خداوند یم په بدل دَ ټولو
ورنبو پیدا شویو په بنِي‌اسرائیلو کښ او څارویِ دَ لاوِیانو په بدل دَ ټولو
۴۲ ورنبو پیدا شویو په څاروو دَ بنِي‌اسرائیلو ۴۲ نو مُوسیٰ ټول ورنبِي
پیدا شوِي په بنِي‌اسرائیلو کښ وشمارل لکه چه خداوند ورته حکم کړي
۴۳ وه ۴۳ نو ټول ورنبِي پیدا شوِي نران به شمار دَ نُومونو دَ میاشتې

او پورته هغه شمار کړي شوي له هغو نه دوه ویشت زر او دوه سوَ
۴۳ او دري اویا وُو ۴۴ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه
۴۵ ۴۵ په بدل دَ هر یو وړنبي پیدا شوي په بني‌اسرائیلو کښ لاویان داخله
او په بدل دَ خارو دَ هغو کښ خاروي دَ لاویانو نو لاویان به زما وي
۴۶ زه خداوند یم ۴۶ لیکن فدیه دَ هغه دوه‌وُ سوو دري اویاوُ زیاتیو به لاویانو
۴۷ باندِ له وړنبو پیدا شویو دَ بني‌اسرائیلو نه ۴۷ نو ته پنځه مثقالَ دَ هر
سر دَپارَ واخله په مثقال دَ مقدِس ئي واخله شل جیراه یوَ مثقال دي
۴۸ ۴۸ او هارون له او دَ هغه ځامنو له به سپین زر ورکوي فدیه دَ
۴۹ زیاتي شویو په دوي باندِ ۴۹ نو موسیٰ سپین زر فدیه دَ هغو واخستله
۵۰ له زیات شویو نه په فدیي دَ لاویانو ۵۰ له وړنبو پیدا شویو دَ بني‌اسرائیلو
نه ئي سپین زر واخستل یو زر او دري سوَ او پنځه شپیته په مثقال
۵۱ دَ قُدس ۵۱ او موسیٰ دَ خداوند دَ حکم په شان لکه چه خداوند موسیٰ
ته حکم کړي وه هغه دَ فدیي سپین زر هارون له او دَ هغه ځامنو
له ورکړل +

# څلورم باب

۱ ۱ بیا خداوند موسیٰ او هارون سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲ دَ بني‌قُهاتو
شمار دَ بني‌لاویانو له مینځ موافق دَ خیلخانو دَ هغو او دَ خاندانو دَ
۳ پلرونو دَ هغو واخله ۳ دَ دیرشو کالو او پورته تر پنځوسو کالو پوري ټول
چه ننوتونکي په فوج کښ وي چه دَ جماعت په خیمه کښ کار وکړي
۴ ۴ دا دي دَ بني‌قُهاتو خدمت دَ جماعت په خیمه کښ چه له پاکو پاک
۵ دي ۵ دَ دیري دَ کوچیدلو په وقت کښ هارون او دَ هغه ځامن دِ راشي
او دَ چت پرده دِ کوزه کاندِ او دَ شهادت په تابوت دِ ئي وغوروي -
۶ ۶ او دَ تنک لاهو دَ پوستکي غلاف دِ پرِ واچوي او دَپاسَ دِ پرِ جامه
وغوروي چه ټوله سوزني رنګه وي او دَ هغي بازوګان دِ په کښ واچوي
۷ ۷ او دَ نذر دَ ډوډيِ په میز دِ سوزني رنګه جامه وغوروي او تالي او

خنچې او پيالې او دَ توېولو کاسي دِ پرِ کيږدي او هغه هميشه دودئِ
۸ دِ په هغه باندِ وِي ۸ او قرمزي جامه دِ په هغو باندِ وغوړوي او دَ
سَنک لاهوُ دَ پوستکي په غلاف دِ ئې پټ کړي او دَ هغه بازوکان دِ
۹ په کښ واچوِي ۹ او سوزني جامه دِ واخلي او دَ روښنائي ډيوټ او دَ
هغه ډِيوي او دَ هغه ګلګيرونه او دَ هغه لګنونه او دَ هغه ټول دَ تيلو
۱۰ لوښي هغه چه دوي دَ هغه خدمت په هغو کوِي پټ دِ کړي ۱۰ او دغه او
دَ دغه ټول لوښي دِ دَ سَنک لاهوُ دَ پوستکي په غلاف کښ واچوِي او په بازو
۱۱ دِ ئې کيږدِي ۱۱ او دَ سرو زرو په مذبح دِ سوزني جامه وغوړوي او دَ سَنک لاهوُ
دَ پوستکي په غلاف دِ ئې پټ کړي او دَ هغه بازوکان دِ په کښ واچوِي
۱۲ ۱۲ او هغه ټول لوښي دَ خدمت چه دوي په مَقدِس کښ په هغو خدمت
کوِي وادِئې خلي او په سوزني جامه کښ دِ ئې کيږدِي او دَ سَنک لاهوُ دَ پوستکي
۱۳ په غلاف دِ ئې پټ کړي او په بازو دِ ئې کيږدِي ۱۳ او دَ مذبح ايرې دِ پورته
۱۴ کړي او ارغواني جامه دِ پرِ وغوړوِي ۱۴ او هغه ټول لوښي دَ هغه چه
دوي په هغو سره خدمت کوِي هغه دِ پرِ کيږدِي مجمرونه او سيخونه او
بيلونه او لګنونه ټول لوښي دَ مذبح او دَ سَنک لاهوُ دَ پوستکي غلاف
۱۵ دِ پرِ وغوړوِي او دَ هغه بازوکان دِ په کښ واچوِي ۱۵ او هر کله چه
هارون او دَ هغه ځامن دَ مَقدِس له پټولو نه او دَ مَقدِس دَ ټولو
لوښو له پټولو نه دَ ډيرې دَ کوچ په وقت کښ وزګار شي نو پس له هغه
دِ بني قُهات دَ پورته کولو دَ پارَ راشي ليکن مَقدِس دِ نه مسح کوِي چه
۱۶ سره نه شي دَ جماعت په خيمه کښ دَ بني قُهاتو هم دغه باردي ۱۶ او
دَ اَلِعازار دَ هارون کوهن دَ خوبي واکداري هم دَ روښنائي تيل او دَ
خوشبوئي بخور او دَ هميشه دَ ميدې قرباني او دَ مسح کولو تيل او واکداري
دَ ټول مسکن او ټول هغه څه چه په کښ دي دَ مَقدِس او دَ هغه
دَ لوښو سره
۱۷ ۱۷ بيا خداوند دَ موسیٰ او دَ هارون سره خبري وکړي و ئې ويل چه

۱۸ ۱۹ ۱۸ اولاد دَ خیلخانو دَ قیهاتیانو له مینځ دَ لاویانو نه مه پریکوئ ۱۹ بلکه
دَ دوي دَ پاره داسي وکړئ چه دوي ژوندي شي او په وقت دَ هغه پیرو
پاکو څیزونو دَ نزدي کیدو کښ مړه نه شي او هارون او دَ هغه ځامن
دِ ننوځي او هغوي دِ هر سړي په خپل خدمت او په خپل بار ودروي
۲۰ ۲۰ او دَ مقدس دَ لیدلو دَ پاره دِ یوه لحظه نه ننوځي چه مړه نه شي
۲۱ ۲۲ ۲۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي وئې ویل چه ۲۲ شمار دَ
بني جرشونو هم موافق دَ خاندانو دَ پلرونو دَ هغو او دَ خیلخانو دَ هغو
۲۳ واخله ۲۳ دَ دیرشو کالو او په پورته تر پنځوسو کالو دَ سړي پوري ئې
وشماره هغه ټول ننوتونکي په لښکرو کښ دَ لښکري کیدلو دَ پارَ چه دَ
۲۴ جماعت په خیمه کښ خدمت کوي ۲۴ دا دَ جرشونیانو دَ خیلخانو خدمت
۲۵ دي له هغه خدمت کولو او له هغه بارولو نه ۲۵ پردي دَ مسکن او دَ
جماعت خیمه او غلاف دَ هغي او هغه دَ سَگ لاهو دَ پوستکي غلاف
چه په هغي باندِ دَ پاسَ دي او دَ جماعت دَ خیمي دَ دروازي پرده دِ پورته
۲۶ کړي ۲۶ او دَ غولي پردي او دَ غولي دَ ننوتلو دَ دروازي پرده هغه چه گیر
چاپیر له مسکن نه او له مذبح نه وي او طنابونه دَ هغو او ټول لوښي
دَ خدمت دَ هغو او هر څه دَ هغو دَ پارَ چه پرِ کار کولي شي نو دوي
۲۷ دِ دا شان خدمت کوي ۲۷ دَ جرشونیانو ټول خدمت له ټولو بارولو دَ هغو
نه او له ټولَ خدمتَ دَ هغو نه او دَ واکدار کولو دَ هغو په ساتني دَ
ټولو بارولو دَ هغو موافق دَ ویلو دَ هارون او دَ هغه دَ ځامنو سره
۲۸ دِ وي ۲۸ دَ بني جرشونو دَ خیلخانو خدمت دَ جماعت په خیمه کښ دا دي
او ساتنه دَ هغو دِ په لاس دَ ایتامار دَ هارون کوهین دَ ځوي وي
۲۹ ۲۹ بني مراري موافق دَ خیلخانو دَ هغو او دَ خاندانو دَ پلرونو دَ هغو
۳۰ وشماره ۳۰ دَ دیرشو کالو او په پورته تر پنځوسو کالو پوري هغه ټول
۳۱ ننوتونکي په خدمت کښ وشماره چه دَ جماعت دَ خیمي کار کوي ۳۱ او دا
دَه دَ بارولو دَ دوي او دَ جماعت په خیمه کښ ټول خدمت دَ دوي تختي

دَ مسکن او اَرَمي دَ هغه او ستني دَ هغه او دَ چَور سوري دَ هغه
۳۲ او ستني دَ غولي ئې چه کير چاپير له هغه نه دي او دَ چور ۳۲
موري ئې او ميخونه ئې او طنابونه ئې سره دَ ټول اسبابونو دَ هغه
او دَ ټول خدمت دَ هغه او په نومونو سره شماريئ لوښي دَ ساتنې
دَ بارولو دَ هغو ۳۳ دَ بني مَراري دَ خيلخانو خدمت دا دي په شان دَ ۳۳
ټول خدمت دَدوي دَ جماعت په خيمه کښ دَ ايثامار دَ هارون کوهن دَ
ځوي په لاس دِ وي

۳۴ نو موسیٰ او هارون او دَ جماعت سردارانو بني قُهات موافق ۳۴
دَ خيلخانو دَ هغو او دَ خاندانو دَ پلرونو ئې وشمارل ۳۵ دَ ديرشو کالو او ۳۵
په پورته تر پنځوسو کالو پوري ټول ننوتنکي په خدمت کښ دَ جماعت په
خيمه کښ دَ کار دَپارَ ۳۶ نو هغه شمار کړي شوي له هغو نه موافق ۳۶
دَ خيلخانو دَ هغو سره دوه زرَ او اووه سوَ او پنځوس وُو ۳۷ هم دغه ۳۷
شمار کړي شوي وُو دَ قُهاتيانو له خيلخانو نه هغه ټول خدمتکاران دَ
جماعت په خيمه کښ هغه چه هغوي موسیٰ او هارون شمارلي وُو په
شان دَ حکم دَ خداوند له لاسَ دَ موسیٰ نه

۳۸ او هغه شمار کړي شوي له بني جِرشون نه موافق دَ خيلخانو دَ ۳۸
هغو او دَ خاندانو دَ پلرونو ئې ۳۹ دَ ديرشو کالو او په پورته تر پنځوسو ۳۹
کالو پوري ټول ننوتنکي په خدمت کښ دَ جماعت په خيمه کښ دَ خدمت
دَپارَ ۴۰ هغه شمار کړي شوي له هغو نه موافق دَ خيلخانو دَ هغو او دَ ۴۰
خاندانو دَ پلرونو ئې دوه زرَ او شپږ سوَ او ديرش وُو ۴۱ هم دغه شمار ۴۱
کړي شوي وُو دَ بني جِرشونو له خيلخانو نه هغه ټول خدمت دَ جماعت په خيمه
کښ هغه چه هغوي موسیٰ او هارون شمارلي وُو په شان دَ خداوند دَ
ويلو سره

۴۲ او هغه شمار کړي شوي دَ خيلخانو دَ بني مراري موافق دَ خيلخانو ۴۲
دَ هغو او دَ خاندانو دَ پلرونو ئې ۴۳ دَ ديرشو کالو او په پورته تر پنځوسو ۴۳

کالو پورې تول نتوتونکي په خدمت کښ دَ جماعت په خیمه دَ کار دَپارَ
۴۴ ۴۴ هغه شمار کړي شوي له هغو نه موافق دَ خیلخانو دَ هغو دري
۴۵ زرَ او دوه سوَ وُو ۴۵ هم دغه شمار کړي شوي وُو دَ بني مَراري دَ
خیلخانو نه هغه چه موسیٰ او هارون شمارلي وُو موافق دَ خداوند دَ
۴۶ ویلو له لاسَ دَ موسیٰ نه ۴۶ تول شمار کړي شوي لاویان هغه چه
موسیٰ او هارون او دَ اسرائیلو سردارانو موافق دَ خیلخانو دَ هغو او دَ
۴۷ خاندانو دَ پلرونو دَ هغو وشمارل ۴۷ دَ دیرشو کالو او په پورته تر پنځوسو
کالو پورې تول نتوتونکي په خدمت کښ او خدمت دَ بار بارولو دَ جماعت
۴۸ ۴۹ په خیمه کښ ۴۸ شمار شوي اته زرَ او پنځه سوَ او اتیا وُو ۴۹ موافق
دَ ویلو دَ خداوند له لاسَ دَ موسیٰ نه وشمارلي شه هر سړي په شان
دَ خپل خدمت او په شان دَ خپلو بارولو هغه چه ورته شمارلي وُو
موسیٰ لکه چه موسیٰ ته خداوند و فرمایل ❊

## پنځم باب

۱ ۲ ۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ني ویل چه ۲ بني اسرائیلو ته
حکم وکړه چه هر کوړي او هر ناسوري او هر دَ مړي په سبب پلیتیدونکي
۳ دِ له ډیرې نه لري کړي شي ۳ نارینه او ښځه دِ له خپلي ډیرې نه
لري کړي شي دَ دي دَپارَ چه خپلي ډیرې پلیتي نه کړي چه زه دَ دوي
۴ په منځ کښ اوسم ۴ نو بني اسرائیلو هم دغه شان کار وکړ او دوي يې
له ډیرې نه لري کړل لکه چه خداوند دَ موسیٰ سره خبري کړي وي هم
هغه شان بني اسرائیلو وکړل
۵ ۶ ۵ او موسیٰ دَ خداوند سره خبري وکړي و ني ویل چه ۶ بني اسرائیلو ته
ووایه چه که سړي یا ښځي دَ بني آدم له تولو خطاؤ نه څه وکړي او خیانت
۷ يې دَ خداوند سره وکړ نو دغه کس گناه وکړله ۷ نو هغوي دِ په هغه گناه
خپله باندي چه هغو کړي ده اقرار وکړي او هغه څیز چه ده په هغه سره
گناه کړي ده هم هغه دِ بیرته ور وګرزوي او پنځمه حصّه دِ ني په هغه

بانْدِ زیاته کړِي او هغه له دِ يُ ورکړِي چه ګناه يُ دَهغه کړي ده ۸ او که ۸
دَ هغه سړِي وارث نه وه چه هغه دَګناه بدل ورته بيرته ورو ګرزولي
شي نو هغه دَګناه بدل بيرته ورګرزولي شوي دِ دَ خداوند دَپارَ کوهين لره
وِي زياتي دَهغه کفاره له ګډ نه چه په هغه سره دَده دَپارَ کفاره ورکولي
شي ۹ او هرَ بوه دَ پورته کولو قرباني دَ بني‌اسرائيلو دَټولو پاکو څيزونو چه ۹
کوهين ته يُ وړاندِ کوِي دَ هغه دِ وِي ۱۰ او دَ هر سړِي مُقَدَّس څيزونه ۱۰
دِ دَ هغه دِ‌ي چه څه څيز سړِي کوهين له ورکوِي نو دَهغه به شِي
۱۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړِي و يُ ويل چه ۱۲ بني‌اسرائيلو ۱۱
سره خبرِي وکړه او ورته ووايه چه که دَ يوَ سړِي ښځه بدراهه شوله
او دَ هغه سره يُ خيانت وکړ ۱۳ او وِرسره يوَ سړِي څملاستل ۱۳
يُ دَ اولاد دِي او دَ هغي دَ خښتن له سترګو نه پټ شِي او داخبره
پټه پاتي شِي او دا پليته شِي او شاهد په دي بانْدِ نه وِي او هغه
نه شِي نيولي کيدلي ۱۴ نو ده له دَ غيرت خيال راشِي او غيرت وخوري ۱۴
په خپله ښځه بانْدِ او هغه پليته وِي يا ده له دَغيرت خيال راشِي او
غيرت وخورِي په خپله ښځه بانْدِ او هغه پليته نه وِي ۱۵ نو هغه سړِي ۱۵
دِ خپله ښځه کوهين له راولي او دَ هغي قرباني دِ دَ هغي سره لسمه حصه
دَ ايفي دَاوربشو له اوړو نه راوړِي غوړِي دِ پرِ نه آچوِي او لوبان دِ
پرِ نه ږدِي ځکه چه دا دَ غيرت دَ هديي قرباني دَه چه دا ګناه يادَوِي
۱۶ نو کوهين دِ هغه نژدي کړِي او دَ خداوند دَ وړاندِ دِ يُ ودروِي - ۱۶
۱۷ او کوهين دِ پاکي اوبه دَ کودرو په لوښي کښ واخلي او کوهين دِ له ۱۷
هغه ګرد نه واخلي چه دَ مسکن په زمکه کښ دي او په هغه اوبو کښ
دِ يُ واچوِي ۱۸ او کوهين دِ هغه ښځه دَ خداوند دَ وړاندِ ودروِي او سر ۱۸
دَ هغي ښځي دِ سرتور کړِي او په دواړو لاسونو دَدي کښ دِ هغه دَ ۱
يادګارِي دَ هديي قرباني کيږدِي هغه چه هغه دَ غيرت او دَ هديي
قرباني ده او دَ کوهين په لاس کښ دِ هغه دَ لعنت کولو تريخي اوبه وِي

١٩ ١٩ او کوهين دِ هغي له سَوګند ورکړي او هغه ښځي ته دِ ووايي چه که
تا سره سړي ملاست نه وِي او که ته دَ خپل خښتن له لاندِ نه
٢٠ پليتئِ ته تلي نه يي نو دَ لعنت کولو دَ دي تړخو اوبو نه بچ شئ ٢٠ ليکن
که دَ خپل خښتن له لاندِ نه بي‌لاري شوي يي او که پليته شوي يي او تا
٢١ سره بي ستا له خښتن نه بل سړي ملاست وِي ٢١ نو کوهين دِ هغي ښځي
له دَ لعنت په سَوګند سره سَوګند ورکړي او کوهين دِ هغي ښځي ته ووايي
چه خداوند دِ دَ لعنت او دَ قسم ستا دَ قام په منځ کښ تا له وکړي چه
٢٢ خداوند دِ ستا ورون خسا کړي او ستا کيډه دِ وپړسوي ٢٢ او دا دَ لعنت
اوبه دِ ستا په کولمو کښ دَ کيډي دَ پړسوب دَ پاره او دَ ورانه دَ خسا
٢٣ کيدلو دَ پاره ننوځي نو هغه ښځه دِ وايي چه آمين آمين ٢٣ او کوهين دِ
دغه لعنتونه په کتاب کښ وليکي بيا په هغه تړخو اوبو کښ دِ يي وران
٢٤ کړي ٢٤ او هغه دَ لعنت تړخي اوبه دِ په هغي ښځي باندِ وڅښوي نو په
٢٥ هغي کښ به هغه دَ لعنت اوبه دَ تريخوالي دَ پاره ننوځي ٢٥ او کوهين دِ دَ هغي
ښځي له لاس هغه دَ غيرت دَ ميدي قرباني واخلي او هغه دَ ميدي قرباني
٢٦ دِ دَ خداوند دَ وړاندِ وخوځوي او مذبح ته دِ يي وړاندِ کړي ٢٦ او کوهين
دِ له هغي ميدي نه دَ هغي يادګاريِ دَ پاره څه واخلي او هغه دِ په
مذبح باندِ وسيزِي او پس له هغه دِ په هغي ښځي باندِ هغه
٢٧ اوبه وڅښوِي ٢٧ او هر کله چه هغه اوبه يي په هغي وڅښولي نو
که دا پليته شوي وَه او دَ خپل خښتن خيانت يي کړي وه نو هغه دَ
لعنت اوبه به په دي دَ تريخوالي دَ پاره ننوځي نوکيډه به يي وپړسيږي او
ورون به يي خسا شي نو هغه ښځه به دَ خپل قوم په منځ کښ په
٢٨ لعنت شي ٢٨ او که هغه ښځه نه وي پليته شوي بلکه پاکه وي نو
آزاده به شي او په اولاد به حامله شي
٢٩ ٢٩ دا دَ غيرتونو شريعت دي چه چري ښځه دَ خپل خښتن له لاندِ
٣٠ نه کوږه شي او پليته شي ٣٠ يا چه سړي له دَ غيرت خيال راشي نو

غیرت وخوري به خپلي ښځي باندِ نو هغه ښځه دِ دَ خداوند دَ وړاندِ ودروي
۳۱ او کوهین دِ دا ټول شریعت دَ هغي دَپارَ وکړي ۳۱ نو هغه سړي به له
ګناه نه بچ شي او دغه ښځه به خپله ګناه بار کړي *

## شپږم باب

۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي وئ ویل چه ۲ بني‌اسرائیلو سره ۲
خبري وکړه او ورته ووایه چه که څوک سړي یا ښځه خپل ځان جدا کړي
چه خاص نذر ومني نذر دَ نذر منونکي چه دَ خداوند دَپارَ جدا کړي -
۳ ۳ نو له شرابو نه او له نشي نه دِ پرهیز وکړي او سرکه دَ شرابو
او سرکه دَ نشي دِ نه څښي او دَ انګورو شیره دِ نه څښي او نه دِ
۴ تازه انګور خوري او نه وچ ۴ او هر څه چه له انګورو نه جوړولي شي له
هډوکي نه تر پوستکي پوري دَ خپل نذر په ټولو ورځو کښ دِ نه خوري
۵ ۵ او دَ خپلو جداکیدلو دَ نذر په ټولو ورځو کښ چاړه دِ په خپل سر
باندِ نه ګرزوي او دَ هغو ورځو دَ پوره کیدلو پوري چه ده په کښ دَ خداوند
دَپارَ خپل ځان جدا کړي دي مُقَدَّس دِ وي او دَ خپل سر دَ ویښتو سڼي
۶ دِ لویوي ۶ او دَ خداوند دَپارَ دِ دَ خپل نذر په ټولو ورځو کښ دَ مړي
۷ جُسَّي له نه ورځي ۷ پلار دَده او مور دَده او ورور دَده چه دي دَ هغو
دَپارَ دَ هغو دَ مړلو په وقت کښ دِ ځان نه پلیتوي ځکه چه نذر دَده
۸ اَلله ته دَده په سر باندِ دي ۸ دي دِ دَ خپل نذر په ټولو ورځو کښ دَ
۹ خپل خداوند دَپارَ مُقَدَّس وي ۹ او که دَده په خواکښ یو مړي ناګهانه مړ
شي او دَده دَ نذر سرئي پلیت کړي وِیه نو خپل سر دِ دَ خپلو پاکیدلو
۱۰ په ورځ وخریي په اوومه ورځ دِئ وخریي ۱۰ او په اتمه ورځ دِ دوه تمرئي
۱۱ یا دوه دَ قوترو بچي دَ جماعت دَ خیمي درواري څخه کوهین له راوړي ۱۱ نو
کوهین دِ یوه دَ خطا دَپارَ قرباني کړي او بله دِ دَ سولو دَ قربانئ دَپارَ پیش
کړي او دَده دَپارَ دِ کفاره ورکړي چه ده دَ مړي په سبب خطا کړي وَه او
۱۲ په دغه ورځ دِ خپل سر مُقَدَّس کړي ۱۲ او دَ خداوند دَپارَ دِ دَ جدائي ورځي

بېلي کړي يو دَ يو کال کډوري دِ دَ گناه دَ قرباني دَپارَ راولي او څه چه پخواني
ورځې دِي ماتې دِ شي ځکه چه دَ ده نذر ني پليت کړي دي
۱۳ ۱۳ او دَ نذر منونکي دا شريعت دَي چه په هغه ورځ چه دَ هغه
دَ نذر ورځې پوره شي نو هغه دِ دَ جماعت دَ خيمې دروازې ته
۱۴ راوستلي شي ۱۴ نو خپله قرباني دِ دَ خداوند دَپارَ نږدې کړي يو روغ کډوري
دَ کال دَ سولو قرباني او يوه روغه وريې دَ کال دَ خطا قرباني او يو
۱۵ روغ کډ دَ سلامتيا قرباني ۱۵ او توکرئ دَ فطيرو ککورو له ميدې نه
په تيلو اغږلي شوي او فطيرې چپاتئ په تيلو غوړې کړي شوي او دَ
۱۶ ميدې قربانئ دَ هغو او دَ تويولو قربانئ دَ هغو ۱۶ نو کوهين دِ ئي دَ
خداوند دَ وړاندِ راوړي او دَ ده دَ خطا قرباني او دَ ده دَ سولو قرباني دِ
۱۷ پيش کړي ۱۷ او هغه کډ دِ دَ هغه فطيرو دَ توکرئ سره دَ خداوند دَپارَ
دَ سلامتيا قرباني کړي او کوهين دِ دَ هغه دَ ميدې قرباني او دَ هغه
۱۸ دَ تويولو قرباني وکړي ۱۸ او هغه نذرمنونکي دِ دَ جماعت دَ خيمې دَ وړاندِ
دَ خپل نذر سَر وخرئي او وېښته دَ سَر دَ نذر خپل دِ واخلي او
۱۹ په هغه اور دِ ئي کيږدي چه دَ سلامتيا دَ قربانئ دَ لاندِ وي ۱۹ او
کوهين دِ له هغه کډ نه هغه پوخ کړي شوي ولئ او له توکرئ نه يوَ
فطير ککوړي او يوه فطيره چپاتئ واخلي او هغه دِ دَ هغه نذرمنونکي
په ورغوونس کيږدي پس دَ هغه دَ خپل نذر دَ وېښتو خريلو نه ـ
۲۰ ۲۰ او کوهين دِ هغه دَ خداوند دَ وړاندِ دَ خوځولو قرباني وخوځوي دا دَ
خوځولو دَ سينې او دَ پورته کولو دَ ورانه سره دَ کوهين دَپارَ مُقَدَّس
۲۱ ده پس له دغه دِ نذرمنونکي شراب څښي ۲۱ دَ هغه نذرمنونکي
چه له نذر خپل نه دَ خداوند دَپارَ قربانئ خپله نذر کوي زياتي له
هغه نه چه دَ هغه لاس رسيږي دا شريعت دي موافق دَ هغه نذر
سره چه ده منلي دي هم دغه شان موافق دَ خپل نذر دَ شريعت سره
دِ کوي

۲۲ ۲۳ ۲۲ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې ویل چه ۲۳ هارون
او دَ هغه دَ ځامنو سره خبرې وکړه او ووایه چه بني‌اسرائیلو ته داسې
۲۴ دَ برکت دُعا کوئ او هغو ته وائئ ۲۴ خداوند دِ برکت درکړي او تا دِ وساتي
۲۵ ۲۶ ۲۵ خداوند دِ خپل مخ په تا وځلوي او په تا دِ رحمت وکړي ۲۶ خداوند دِ
۲۷ خپل مخ تا ته به توجه کړي او تا ته دِ سلامتیا وبخښي ۲۷ نو دوي دِ
زما نُوم په بني‌اسرائیلو باندِ کیږدِي او زه به دوي ته برکت وبخښم *

# اووم باب

۱ ۱ او په هغه ورځ چه موسیٰ دَ مسکن ودرول پوره کړل او هغه ئې
مسح کړه او مُقَدَّس ئې کړه او ټول اسباب ئې او مذبح او ټول اسباب
۲ ئې او هغه ئې مسح کړل او مُقَدَّس ئې کړل ۲ نو مشرانو دَ اسرائیل چه
دَ خپلو پلرونو دَ خاندانو سرداران وُو دوي مشران دَ خیلخانو وُو هغه
چه ودرولي شوي وُو په هغه شمار کړیو شویو باندِ قربانئ راوستلي -
۳ شپږ گاډِي پرده داري او دولس غوایان هغو قربانئ خپلي دَ خداوند دَ وړاندِ
راوستلی دَ دوو مشرانو یَو گاډي وه او دَ هر یَو دَ پاره یَو غوایي وه او هغو
۴ هغه دَ مسکن مخي ته وړاندِ کړل ۴ نو خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي
۵ و ئې ویل چه ۵ واخله دغه له دوي نه چه دَ جماعت دَ خیمي په خدمت
کښې به بکار شي او ور ئې کړه لاویانو له هر یَو له دَ خپل خدمت په
۶ حساب ۶ نو موسیٰ هغه گاډِي او غوایان واخستل او لاوِیانو له ئې
۷ ورکړل ۷ دوه گاډِي او څلور غوایان ئې دَ جِرشُون ځامنو له دَ هغوي دَ
۸ خدمت په حساب ئې ورکړل ۸ او څلور گاډِي او اته غوایان ئې دَ مرارِي
ځامنوله دَ هغوي دَ خدمت په حساب ورکړل په لاس دَ اِیثامار څوي دَ
۹ هارون کوهن ۹ لیکن دَ قُهات ځامنو له ئې هیڅ ور نه کړل ځکه چه دَ مُقَدِّس
خدمت په هغو باندِ دا وه چه په اوږو باندِ به هغوي باراوه
۱۰ ۱۰ او دَ پاره دَ مخصوص کولو دَ مذبح ئې دَ مسح کولو په ورځ مشرانو
۱۱ قربانئ خپلي دَ مذبح مخي ته وړاندِ کړلي ۱۱ نو خداوند موسیٰ ته وویل چه

هر مشر دِ په خپلي ورځي دَ مذبح دَ مخصوص کولو دَپارَ قربانيِ خپلي
کړِي
۱۲ ۱۲ او هغه چه په ورنبيءِ ورځ يې خپله قرباني کړي وَه هغه
۱۳ نَحْشُون خوي دَ عَمِيناداب وه دَ يَهُودا له فرقي نه ۱۳ او قربانيِ دَ هغه يو
دَ سپينو زرو طباخ وه چه تول دَ هغه يو شل ديرش مثقالَ وه او
يو دَ سپينو زرو کنډول وه اويا مثقالَ په مثقال دَ مَقدِس باندِ
دواړه ډک وُو له ميدي نه چه په تيلو کښ دَ ميدي دَ قربانيِ دَپارَ
۱۴ اخښلي شوي وه ۱۴ او يوه څمڅيءِ دَ سرو زرو لس مثقالَ له بخورنه ډکه
۱۵ وه ۱۵ او يو سخوندر او يو ګډ او يو دَکال وري دَپارَ دَ سوزلو دَ قربانيِ
۱۶ ۱۷ ۱۶ او يو پسه له بزو نه دَ خطا دَقربانيِ دَپارَ ۱۷ او دَ سلامتيا دَ قربانيِ
دَپارَ دوه غوايان او پنځه ګډان او پنځه پسونه او پنځه ګډوري
يوکلني دا دَ نَحْشُون دَ عَمِيناداب دَ خوي قرباني وه
۱۸ ۱۸ او په دويمه ورځ نَتَنائيل دَ صوعار خوي دَ يَسّاکر سردار قرباني
۱۹ وکړه ۱۹ قرباني خپله يې پيش کړله يو طباخ دَ سپينو زرو وه چه تول
دَ هغه يو سل ديرش مثقالَ وه او يو دَ سپينو زرو کنډول وه اويا مثقالَ
په مثقال دَ مَقدِس باندِ دواړه له ميدي نه ډک وُو چه په تيلو کښ
۲۰ دَ ميدي دَ قربانيِ دَپارَ اخښلي شوي وَه ۲۰ او يوه څمڅيءِ دَ سروزرو لس
۲۱ مثقالَ له بخور نه ډکه وه ۲۱ او يو سخوندر او يوګډ او يو ګډوري يوکلني
۲۲ دَ سوزلو دَ قربانيِ دَپارَ ۲۲ او يوپسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانيِ دَپارَ -
۲۳ ۲۳ او دَ سلامتيا دَ قربانيِ دَپارَ دوه غوايان او پنځه پسونه او پنځه ګډوري
يوکلني دا دَ نَتَنائيل دَ صوعار دَ خوي قرباني وه
۲۴ ۲۴ او په دريمه ورځ دَ بني زَبُولُن سردار اِلِياب دَ حيلُون خوي -
۲۵ ۲۵ قربانيِ دَ هغه يو طباخ دَ سپينو زرو وه چه تول دَ هغه يو سل ديرش
مثقالَ وَه او يو دَ سپينو زرو کنډول وه اويا مثقالَ په مثقال دَ مَقدِس
باندِ دواړه ډک وُو له ميدي نه چه په تيلو کښ دَ ميدي دَ قربانيِ دَپارَ

اخپلي شوي وه ۲۶ او يوه خمچۍ د سرو زرو لس مثقاله بخور نه ۲۶
ډکه ۲۷ او يو سخوندر او کډه او يو کلني کډوري د سوزلو د قرباني دپاره ۲۷
۲۸ او يو پسه له بزو نه د خطا د قربانۍ دپاره ۲۹ او د سلامتيا د قربانۍ ۲۸ ۲۹
دپاره دوه غوايان او پنځه کډان او پنځه پسونه او پنځه کډوري يو کلني
دا د اِلِيآب د حِيلُون د ځوي قرباني وه ۳۰ او په څلورمه ورځ د بني‌روبين ۳۰
سردار اِليصُور د شدِيئُور ځوي ۳۱ قرباني د هغه يو طباخ د سپينو ۳۱
زرو چه تول د هغه يو سل ديرش مثقال او يو د سپينو زرو کنډول
اويا مثقال په مثقال د مقدس باندِ دواړه ډک وُو له ميدي نه
چه په تيلو کښ د ميدي د قرباني دپاره اخپلي شوي وه ۳۲ او يوه خمچۍ ۳۲
د سرو زرو لس مثقال له بخور نه ډکه ۳۳ او يو سخوندر او يو کډه ۳۳
او يو د کال کډوري د سوزلو د قربانۍ دپاره ۳۴ او يو پسه له بزو نه ۳۴
د خطا د قربانۍ دپاره ۳۵ او د سلامتيا د قربانۍ دپاره دوه غوايان او ۳۵
پنځه کډان او پنځه پسونه او پنځه کډوري يو کلني دا د اِليصُور د شديئُور
د ځوي قرباني وه

۳۶ او په پنځمه ورځ د بني شمعُون سردار شلومئيل د صوريشدّاي ۳۶
ځوي ۳۷ قرباني د هغه يو طباخ د سپينو زرو چه تول د هغه يو سل ۳۷
ديرش مثقال وه او يو د سپينو زرو کنډول اويا مثقال په مثقال د
مقدس باندِ دواړه ډک وُو له ميدي نه چه په تيلو کښ د ميدي د
قربانۍ دپاره اخپلي شوي وه ۳۸ او يوه خمچۍ د سرو زرو لس مثقال ۳۸
له بخور نه ډکه ۳۹ او يو سخوندر او يو کډه او يو يو کلني کډوري د سوزلو ۳۹
د قربانۍ دپاره ۴۰ او يو پسه له بزو نه د خطا د قربانۍ دپاره ۴۱ او د ۴۰ ۴۱
سلامتيا د قربانۍ دپاره دوه غوايان او پنځه کډان او پنځه پسونه او پنځه
کډوري يو کلني دا د شلومئيل د صوريشدّاي د ځوي قرباني وه

۴۲ او په شپږمه ورځ د بني‌جاد سردار اِلياساف د دعُوئيل ځوي- ۴۲
۴۳ قرباني د هغه يو طباخ د سپينو زرو چه تول د هغه يو سل ديرش ۴۳

مثقالَ وه او يو دَ سپينو زرو كنډول وه اويا مثقالَ په مثقال دَ
مَقْدِس باندِ دواړه ډک وُو له ميدي نه چه په تيلو كښ دَ ميدي
۴۴ دَ قربانئِ دَپارَ اخښلي شوي وَه ۴۴ او يوه ځمڅئ دَ سرو زرو لس مثقالَ
۴۵ له بخور نه ډكه ۴۵ او يو سخوندر او يو كډ او يو كلني كډوري دَ سوزلو دَ
۴۶ ۴۷ قربانئِ دَپارَ ۴۶ او يو پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانئِ دَپارَ ۴۷ او دَ
سلامتيا دَ قربانئِ دَپارَ دوه غوايان او پنځه كډان او پنځه پسونه او پنځه
كډوري يو كلني دا دَ اَلِيَاسَاف دَ دعويل دَ ځوي قرباني وَه

۴۸ ۴۸ او په اوومه ورځ دَ بني افرايم سردار اليشاماع دَ عميهود ځوي
۴۹ ۴۹ قرباني دَ هغه يو طباخ دَ سپينو زرو چه تول دَ هغه يو سل ديرش
مثقالَ وه او يو دَ سپينو زرو كنډول اويا مثقالَ په مثقال دَ مَقْدِس
باندِ دواړه ډک وُو له ميدي نه چه په تيلو كښ دَ ميدي دَ قربانئِ دَپارَ
۵۰ اخښلي شوي وَه ۵۰ او يوه ځمڅئ دَ سرو زرو لس مثقالَ له بخور نه
۵۱ ډكه ۵۱ او يو سخوندر او يو كډ او يو يو كلني كډوري دَ سوزلو دَ قربانئِ دَپارَ
۵۲ ۵۳ ۵۲ او يو پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانئِ دَپارَ ۵۳ او دَ سلامتيا
دَ قربانئِ دَپارَ دوه غوايان او پنځه كډان او پنځه پسونه او پنځه كډوري
يو كلني دا دَ اَليشاماع دَ عميهود دَ ځوي قرباني وَه

۵۴ ۵۴ او په اتمه ورځ دَ بني منسّي سردار جمليئيل دَ پداهصور ځوي
۵۵ ۵۵ قرباني دَ هغه يو طباخ دَ سپينو زرو وه چه تول دَ هغه يو سل ديرش
مثقالَ وه او يو دَ سپينو زرو كنډول اويا مثقالَ په مثقال دَ مَقْدِس
باندِ دواړه ډک له ميدي نه چه په تيلو كښ دَ ميدي دَ قربانئِ دَپارَ
۵۶ اخښلي شوي وَه ۵۶ او يوه ځمڅئ دَ سرو زرو لس مثقالَ له بخور نه
۵۷ ډكه ۵۷ او يو سخوندر او يو كډ او يو يو كلني كډوري دَ سوزلو دَ قربانئِ
۵۸ ۵۹ دَپارَ ۵۸ او يو پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانئِ دَپارَ ۵۹ او دَ سلامتيا
دَ قربانئِ دَپارَ دوه غوايان او پنځه كډان او پنځه پسونه او پنځه
كډوري يو كلني دا دَ جمليئيل دَ پداهصور دَ ځوي قرباني وَه

۶۰ ۶۰ او په نهمه ورځ دَ بني بِنیامِین سردار دَ اَبِیدان دَ جدعونِي څوی
۶۱ ۶۱ قرباني دَ هغه یَو طباخ دَ سپینو زرو چه تول دَ هغه یَوسل دیرش
مثقالَ وه او یَو دَ سپینو زرو کنډول اویا مثقالَ په مثقال دَ مُقدِس
باندِ دواړه ډک وُو له میدې نه چه په تیلو کښ دَ میدې دَ قربانۍ دَپارَ
۶۲ اخښلي شوي وَه ۶۲ او یَوه څمڅۍ د سرو زرو لس مثقالَ له بخُور نه ډکه
۶۳ ۶۳ او یَو سخوندر او یَوګډ او یَو یَو کلنۍ ګډوري دَ سوزلو دَ قربانۍ
۶۴ ۶۵ دَپارَ ۶۴ او یَو پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانۍِ دَپارَ ۶۵ او دَ سلامتیا
دَ قربانۍِ دَپارَ دوه غوایان او پنځه ګډان او پنځه پسونه او پنځه ګډورِي یَو
کلني دا دَ ابیدان دَ جِدعونِي دَ څوي قرباني وه
۶۶ ۶۶ او په لسمه ورځ دَ بنيِ‌دان سردار اَخِیعزر دَ عمیشدّاي څوي
۶۷ ۶۷ قربانِي دَ هغه یَو طباخ دَ سپینو زرو چه تول دَ هغه یَوسل دیرش
مثقالَ او یَو دَ سپینو زروکنډول اویا مثقالَ په مثقال دَمُقدِس باندِ
دواړه ډک وُو له میدې نه چه په تیلو کښ دَ میدې دَ قربانۍِ دَپارَ
۶۸ اخښلي شوي وَه ۶۸ او یوه څمڅۍ دَ سرو زرو لس مثقالَ له بخور نه ډکه
۶۹ ۶۹ او یَو سخوندر او یَوګډ او یَو یَو کلني ګډوري دَ سوزلو دَ قربانۍِ دَپارَ
۷۰ ۷۱ ۷۰ او یَو پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانۍِ دَپارَ ۷۱ او دَ سلامتیا دَ قربانۍِ
دَپارَ دوه غوایان او پنځه ګډان او پنځه پسونه او پنځه ګډورِي یَو کلنِي
دا دَ اخیعزر دَ عمیشدّاي دَ څوي قربانِي وه
۷۲ ۷۲ او په یَولسمه ورځ دَ بنيِ‌اشیر سردار پجعیئیل دَ عکران څوي
۷۳ ۷۳ قربانِي دَ هغه یَو طباخ دَ سپینو زرو وه چه تول دَ هغه یَوسل
دیرش مثقالَ وه او یَو دَ سپینو زرو کنډول اویا مثقالَ په مثقال دَ
مَقدِس باندِ دواړه ډک وُو له میدې نه چه په تیلو کښ دَ میدې دَ
۷۴ قربانۍ دَپارَ اخښلي شوِي وَه ۷۴ او یَوه څمڅۍ دَ سرو زرو لس مثقالَ له
۷۵ بخُور نه ډکه ۷۵ او یَو سخوندر او یَوګډ او یَو یَو کلني ګډوري دَ سوزلو
۷۶ ۷۷ دَ قرباني دَپارَ ۷۶ او یَو پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانۍِ دَپارَ ۷۷ او دَ

سلامتیا دَ قربانئِ دَپارَ دوه غوایان او پنځه کډان او پنځه پسونه او
پنځه کډوري یوَکلني دا دَ پجعیئیل دَ عکران دَځوي قرباني وَه
۷۸ ۷۸ او په دولسمه ورځ دَ بني‌نفتالي سردار اِحیرع دَ عِینان ځوي
۷۹ ۷۹ قرباني دَ هغه یوَ طباخ دَ سپینو زرو چه تول دَ هغه یوَ سل دیرش
منقالَ وه او یوَ دَ سپینو زرو کنډول اویا منقالَ په منقال دَ مُقدس
باندِ دواړه ډک وُو له میدي نه چه په تیلو کښ دَ میدي دَ قربانئِ
۸۰ دَپارَ اخښلي شوي وه ۸۰ او یوَه ځمځئ دَ سرو زرو لس منقالَ له بخور
۸۱ نه ډکه ۸۱ او یوَ سخوندر او یوَ کډ او یوَ یوَ کلني کډوري دَ سوزلو دَ
۸۲ ۸۳ قربانئِ دَپارَ ۸۲ او یوَ پسه له بزو نه دَ خطا دَ قربانئِ دَپارَ ۸۳ او دَ
سلامتیا دَ قربانئِ دَپارَ دوه غوایان او پنځه کډان او پنځه پسونه او پنځه
کډوري یوَ کلني دا دَ اَحِیرَع دَ عِینان دَ ځوي قرباني وَه
۸۴ ۸۴ دا دَ مذبح تخصِیص کول وُو دَ هغه دَ مسح کولو په ورځ دَ اسرائیلو
دَ سردارانو له طرفَ دَ سپینو زرو دولس طباخونه او دَ سپینو زرو
۸۵ دولس کنډولي او دَ سرو زرو دولس ځمځئِ ۸۵ هر طباخ یوَ سل دیرش
منقالَ سپین زر او هره کنډول اویا منقال دَ لونبو تول سپین زر
۸۶ دوه زرَ څلور سوَ منقالَ دَ مَقدِس په منقال باندِ وُو ۸۶ او دَ سرو
زرو دولس ځمځئِ له بخُور نه ډکي وي هره ځمځئِ لس منقالَ دَ مَقدِس
۸۷ په منقال باندِ وَه دَ ځمځو تول سره زر یوَ سل شل منقالَ ۸۷ تول
دَ سوزلو دَ قربانئِ غوایان دولس او کډان دولس وُو او یوَ کلني کډوري
دولس وُو دَ هغو دَ میدي دَ قربانئِ سره او دَ خطا دَ قربانئِ پسونه دولس
۸۸ وُو ۸۸ او دَ سلامتیا دَ قربانئِ دَپارَ تول غوایان څلیریشت وُو او کډان
شپیته وُو او پسونه شپیته وُو او یوَ کلني کډوري شپیته وُو دا دَ
مذبح تخصِیص کول وُو پس دَ هغه دَ مسح کولو نه
۸۹ ۸۹ نو هر کله چه موسیٰ دَ جماعت خیمي ته ننوت چه دَ هغه سره
خبري وکړي نو آواز به ئي آوریدٔ له پورته دَ کَفُورث نه به ئي ورسره

خبري کولې چه هغه دَ شهادت په تابوُت باندِ دَ دوارو کروبیانو په مینځ
کښِ وه نو خبرې ئې ورسره وکړلې ✣

## اتم باب

آ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې ویل چه ۲ دَ هارون سره ۱ ۲
خبرې وکړه او ورته ووایه چه هرکله چه ته ډیوې بلې کړې نو اووه واړه
ډیوې دِ دَ شمعدان دَ وړاندِ رڼا وکړي ۳ نو هارون هم هغه شان ۳
کار وکړ دَ شمعدان دَ وړاندِ ئې دَ هغه ډیوې بلې کړې لکه چه خداوند
موسیٰ ته حکم کړی وه ۴ او دَ هغه شمعدان کاریګري له سرو زرو نه ۴
ټکیدلې شوې وه چه تر ډنډئ دَ هغه او تر ګُلَ دَ هغه هم ټکیدلې
شوې وه هم دغه شان کار دَ شمعدان دَ هغې نمونې سره موافق وه
چه هغه خداوند موسیٰ ته ښودلې وه
۵ او خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې ویل چه ۶ دَ بني‌اسرائیلو ۵ ۶
له مینځَ لاویان واخله او پاک ئې کړه ۷ او دَ دوی سره دغه شان ۷
کار کوه دَ دوی دَ پاکولو دَپارَ په دوی باندِ دَ خطا دَ لرې کولو اوبه
چنړکاؤ کړه او دوی دِ په خپلو ټولو جُسَو باندِ چاړه وګرزوي او خپل
زړوکي دِ ووینځي نو پاک به شي ۸ بیا دِ یو سخوندر او خپله دَ میدې قرباني ۸
میده په تیلو کښِ اخښلې شوې واخلي او یو بل سخوندر دَ خطا دَ قربانئ
دَپارَ ته واخله ۹ نو لاویان دَ جماعت دَ خیمې په مخ کښِ وړاندِ کړه او ۹
ټول جماعت دَ بني‌اسرائیلو جمع کړه ۱۰ او لاویان دَ خداوند په مخ کښِ وړاندِ ۱۰
کړه نو بني‌اسرائیل دِ خپل لاسونه په لاویانو کیږدي ۱۱ او هارون دِ دَ ۱۱
بني‌اسرائیلو له طرفَ دَ خوښولو دَ قربانئ په شان دَ خداوند دَ وړاندِ لاویان
وخوځوي دَپارَ دَ دې چه هغوئ دَ خداوند خدمت وکړي ۱۲ پس لاویان دِ ۱۲
خپل لاسونه دَ هغه دواړو سخوندرو په سرونو باندِ کیږدي نو یو دِ
خداوند لره دَ خطا قرباني کړي او بل دِ دَ سوزلو قرباني کړي دَ لاویانو دَ
کفاري دَپارَ ۱۳ نو ته لاویان دَ هارون او دَ هغه دَ ځامنو دَ وړاندِ ۱۳

١٤ ودروه او دَ خوځولو دَ قرباني په شان ئې خداوند ته وخوځوه ١٤ او لاويان
١٥ دَ بني‌اسرائيلو له مينځ نه جدا کړه نو لاويان به خاص ما لره شي ١٥ او
پس له دغه دِ لاويان راځي چه دَ جماعت دَ خيمې خدمت کوي نو ته
١٦ دوي پاک کړه او دَ خوځولو دَ قرباني په شان ئې وخوځوه ١٦ په تحقيق
سره چه دوي دَ بني‌اسرائيلو له مينځ ما ته بخښلي شوي دي په بدل دَ
هر يو رحم پرانونکي دَ هر يو ورنبي پيدا شوي له بني‌اسرائيلو نه ما
١٧ دوي دَ ځان دَپارَ اخستلي دي ١٧ ځکه چه هر يو ورنبي پيدا شوي په
بني‌اسرائيلو کښ له سړو نه او له ځاروو نه ځما دي په هغه ورځ
کښ چه ټول ورنبي پيدا شوي مِ دَ مصر په زمکه کښ وهلي دي نو دوي
١٨ مِ ځان له مُقدّس کړي دي ١٨ نو لاويان مِ په بدل دَ هر يو ورنبي
١٩ پيدا شوي دَ بني‌اسرائيلو کښ اخستلي دي ١٩ او لاويان مِ دَ بني‌اسرائيلو
له مينځ هارون ته او دَ هغه ځامنو ته بخښلي دي چه دَ جماعت په
خيمه کښ دَ بني‌اسرائيلو خدمت کوي او دَ بني‌اسرائيلو دَ کفاري دَپارَ
دَ دي چه مَقدِس ته دَ بني‌اسرائيلو دَ نږدي کيدلو په وقت کښ په
٢٠ بني‌اسرائيلو کښ وبا نه وي ٢٠ نو موسیٰ او هارون او دَ بني‌اسرائيلو ټول
جماعت دَ لاويانو سره وکړل موافق دَ هر هغه څه چه خداوند دَ لاويانو
په حق کښ موسیٰ ته حکم کړي وه هم هغه شان هغو سره بني‌اسرائيلو
٢١ وکړل ٢١ نو لاويانو خپل ځانونه له خطا نه پاک کړل او خپل زروکي ئې
ووينځل او هارون دَ خوځولو دَ قرباني په شان دَ خداوند دَ وړاندي
٢٢ وخوځول او دَ هغو دَپارَ هارون دَ هغو دَ پاکولو دَپارَ کفاره ورکړه ٢٢ پس
له هغه لاويان دَجماعت دَخيمې دَخدمت دَپارَ دَ هارون دَ وړاندِ او
دَ هغه دَ ځامنو دَ وړاندِ راغلل لکه چه خداوند موسیٰ ته دَ لاويانو په
حق کښ موسیٰ ته حکم کړي وه هم هغه شان ئې ورسره وکړل
٢٣ ٢٤ ٢٣ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئې ويل چه ٢٤ دا دي هغه
چه دَ لاويانو دَپارَ دي دَ پنځه ويشتو کالو او پورته دِ راځي چه دَ جماعت

دَ خیمي دَ خدمت په لښکر کښ داخل شي ۲۵ او دَ پنځوسو کالو سړي دِ ۲۵
دَ خدمت له لښکر نه بیرته ځي او پس له هغه دِ خدمت نه کوي ۲۶ دَ ۲۶
خپلو ورونړو سره دِ دَ جماعت په خیمه کښ څوکیداري کوي دَ پاره دَ
ساتلو دَ ساتني لیکن خدمت دِ نه کوي هم دا رنګ کوه دَ لاویانو سره
دَ هغو په ساتني کښ +

## نهم باب

۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره دَ سینا په بیابان کښ دَ دوي دَ مصر له مزکي ۱
نه دَ وتلو په دویم کال په ورمبئ میاشت کښ خبري وکړي و ئي ویل چه
۲ بني اسرائیل دِ فصح په خپل وقت کښ وکړي ۳ په څوارلسمه ورځ دَ دغي ۲ ۳
میاشتي دِ نماښام وکړي په خپل وقت کښ موافق دَ ټولو حقونو دَ
هغه او دَ ټولو قانونو دَ هغه دِ ئي وکړي ۴ نو موسیٰ دَ بني اسرائیلو سره ۴
خبري وکړي چه دوي فصح وکړي ۵ نو دوي په ورمبئ میاشت کښ په ۵
څوارلسمه ورځ کښ له دغي میاشتي نه په مینځ دَ نماښام کښ دَ سینا په
بیابان کښ موافق دَ هر هغه څه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه هم هغه
شان بني اسرائیلو وکړه
۶ لیکن بعض سړي دَ یو مړ سړي په سبب پلیت شوي وُو نو هغوي ۶
په دغي ورځي کښ فصح نه شُوه کولي نو دَ موسیٰ او دَ هارون مخي ته په دغه
ورځ کښ وړاندِ شول ۷ او ورته دغو سړو وویل چه مونږ دَ یو مړ سړي ۷
په جُسّه پلیت شوي یُو نو ولي منع کولي شُو چه دَ خداوند قرباني په خپل
وقت کښ دَ بني اسرائیلو په مینځ کښ نه شُوکولي ۸ نو موسیٰ ور ته ۸
وویل چه ودریږئ چه خداوند ستاسو دَ پاره څه حکم وکړي چه هغه واورم
۹ نو خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۱۰ دَ بني اسرائیلو ۹ ۱۰
سره خبري وکړه ووایه چه هر یُو سړي له تاسو نه یا ستاسو له پیړو نه
چه دَ مړي په جُسّه پلیت شوي وي یا په لري سفر کښ وي نو هم
دَ خداوند دَ پاره دِ فصح کوي ۱۱ په دویمه میاشت کښ په څوارلسمه ورځ کښ ۱۱

په مینځ دَ نمابنام کښ دِ يُ کوِي دَ فطيري ډوډيُ او دَ تريخ ساګ سره
١٢ دِ يُ خورِي ١٢ تر صباح پوري دِ ترِ نه څه نه پريږدِي او هډوکي دِ ترِ
١٣ نه ماتوِي دَ فصح دَ ټولو حقونو سره دِ يُ کوِي ١٣ ليکن چه څوک پاک وِي
او په سفر کښ نه وِي او دَ فصح کول پريږدِي نو دغه سري دِ له خپلي
خيلخانيِ نه جدا کړِي شي ځکه چه ده دَ خداوند قربانيِ په خپل وقت کښ
١٤ نه دَه کړِي دغه سړِي به خپله ګناه بار کړِي ١٤ او که څوک مسافر
ستاسو په مينځ کښ اوسيده نو هغه دِ دَ خداوند دَپارَ فصح کوِي دَ فصح
دَ حقونو او دَ هغه دَحکم سره موافق هم هغه شان کار دِ کوِي
تاسو له دَ مسافر دَپارَ او دَ زمکي دَ وطني دَپارَ دِ يَو حق وِي
١٥ ١٥ او دَ مسکن دَ ودرولو په ورځ کښ نو وريځي هغه مسکن چه
دَ شهادت خيمه دَه پټ کړ او دَ شپي په مسکن باندِ لکه دَ اور نمونه
١٦ وَه تر صباح پوري ١٦ هم دغه شان به مدام وريځي پټاوه او دَ اور
١٧ نمونه به دَ شپي وه ١٧ او هر کله چه به له خيمي نه وريځ پورته شوله
نو بني‌اسرائيلو به کوچ کاوه او په هر هغه ځاي کښ چه به ودريدله
١٨ نو هلته به بنيِ‌اسرائيل ډيره کيدل ١٨ موافق دَ خداوند له حکمَ سره به
بنيِ‌اسرائيل کوچيدل او موافق دَ خداوند له حکمه سره به ډيره کيدل -
١٩ ١٩ او چه وريځ به په مسکن باندِ ډيرو ورځي ودريدله نو بني‌اسرائيلو به
دَ خداوند ساتنه ساتله او کوچ به يُ نه کاوه ٢٠ او چه وريځ به لږي ورځي
په مسکن پاتي شوله نو موافق دَ خداوند له حکمَ سره به ډيره کيدل او
٢١ موافق دَ خداوند له حکمه سره به کوچيدل ٢١ او داسي وُو چه وريځ به
له شپي نه تر صباح پوري وه که به وريځ په صباح کښ پورته شوله
نو دوي به کوچيدل يا چه دَ ورځي يا دَ شپي به وَه بيا به اوريځ پورته
٢٢ شوله نو دوي به کوچيدل ٢٢ يا دوه ورځي يا مياشت يا کال چه به وريځ
په مسکن باندِ اوږده پاتي شوله او غوريدلي به وَه پرِ باندِ نو بنيِ‌اسرائيل
به ډيره کيدل او کوچ به يُ نه کاوه او هر کله چه به پورته شوله نو به

کوچیدل ۲۳ موافق دَ خداوند له حکمَ سره به دوي کوچیدل او دَ خداوند ساتنه ۲۳
به ئي ساتله موافق دَ خداوند له حکمه سره چه دَ موسیٰ په لاس وُو +

## لسم باب

۱ بیا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲ جوړي کړه ځان له ۱ ۲
دوه قرنا له سپینو زرو نه دواړه تکیدلي جوړي کړه چه دوي تا له دَ
جماعت دَ بللو دَپارَ او دَ ډیري دَ کوچ دَپارَ شي ۳ نو چه دوي دغه دواړه ۳
ووهي نو ټول جماعت دِ دَ جماعت دَ خیمي دروازي ته تا ته جمع کیږي
۴ او چه دوي یوه ووهي نو هغه سرداران چه دَ زرګونو بني اسرائیلو سرداران ۴
دي هغوي دِ تا ته جمع کیږي ۵ او که په نرئ غټ آواز سره ئي تاسو ۵
ووهئ نو هغه ډیره دِ وکوچیږي چه دَ نمرخاته په طرف ډیره دِ ي ۶ او ۶
چه دوباره ئي تاسو په نرئ غټ آواز سره ووهئ نو هغه ډیري دِ وکوچیږي
چه دَ سُهیل په طرف ډیره دِ ي په نرئ او غټ آوازونو سره دِ دَ هغو دَ
کوچونو دَپارَ ووهي ۷ لیکن دَ جماعت دَ جمع کیدلو په وقت ئي تاسو ووهئ ۷
خو په نرئ غټ آواز سره ئي مه ووهئ ۸ او بني هارون کوهینان دِ ۸
قرناګاني ووهي نو دا ستاسو په پیړو کښ همیشه حق دي ۹ او که چري ۹
تاسو په خپله زمکه کښ په هغه دښمن پسي جنګ له لاړ شئ چه تاسو
ربړوي نو په نرئ غټ آواز سره قرنا ووهئ نو دَ خداوند الله خپل دَ وړاندِ
به یاد کړي شئ او له خپلو دُښمنانو نه به خلاص کړلي شئ ۱۰ او په ورځ ۱۰
دَ خوشحالئ ستاسو کښ او په اخترونو ستاسو کښ او ستاسو دَ میاشتو
په شروع کښ دَ سوزلو په قربانو باندِ او دَ سلامتئ په ذبحو خپلو باندِ
قرناګاني ووهئ چه ستاسو دَ الله دَ وړاندِ ستاسو دَپارَ یادګاري وي زه
خداوند الله ستاسو یم ۱۱ او په دویم کال کښ په دویمه میاشت کښ په شلم ۱۱
دَ میاشتي ورځ دَ شهادت له مسکن نه پورته شوله ۱۲ نو بني اسرائیل ۱۲
دَ سینا له بیابان نه په خپلو کوچونو وکوچیدل نو وریځ دَ فاران په
بیابان کښ کوزه شوله ۱۳ موافق دَ خداوند دَ ویلو سره په لاس دَ موسیٰ ۱۳

بانْدِ دوي ورنبي وکوچيدل ۱۴ نو دَ بني يهُودَا دَ ډيري نشان موافق ۱۴
دَ هغو دَ لښکرو سره ورنبي وکوچيده او دَ هغه په فوځ بانْدِ نَحْشُون
دَ عميناداب څوي وه ۱۵ او دَ بنِي يساکار دَ فرقي په فوځ بانْدِ نَتْنَائيل ۱۵
دَ صُوعار څوي وه ۱۶ او دَ بني زبولُن دَ فرقي په فوځ بانْدِ اِلياب دَ ۱۶
حيلون څوي وه ۱۷ او مسکن کوزکړي شه او بنيجَرْشون او بني مَرارِي ۱۷
دَ مسکن بارووُنکِي وکوچيدل ۱۸ پس له هغه دَ راوبينو دَ ډيري نشان ۱۸
موافق دَ هغو دَ فوځ سره وکوچيده او دَ هغه په فوځ بانْدِ اَليصُور دَ
شَدِيئُور څوي وه ۱۹ او دَ بنِيشَمْعُون دَ فرقي په فوځ بانْدِ شلوميئيل دَ ۱۹
صُورِيشدّاي څوي وه ۲۰ او دَ بنِيجاد دَ فرقي په فوځ بانْدِ اَلياساف دَ ۲۰
دعوئِيل څوي وه ۲۱ او قهاتيان دَ مَقدِس باروُونکِي وکوچيده او مسکن ۲۱
ودرولي شوي وه تر هغه پوري چه دوي راغلل ۲۲ او دَ بني افرايمو دَ ډيري ۲۲
نشان موافق دَ هغو دَ فوځ سره وکوچيده او دَ هغه په فوځ بانْدِ اَليشاماع
دَ عميهُود څوی وه ۲۳ او دَ بني مَنَسّي دَ فرقي په فوځ بانْدِ جَمليئيل دَ ۲۳
فداهَصُور څوي وه ۲۴ او دَ بَنِي بِنْيامِين دَ فرقي په فوځ بانْدِ اَبِيدان دَ ۲۴
جِدعونِي څوي وه ۲۵ او دَ بني دان دَ ډيري نشان له ټولو ډيرو نه ورستو ۲۵
موافق دَ هغو دَ فوځ سره وکوچيده او دَ هغه په فوځ بانْدِ اَحِيعَزر دَ
عَمِيشدّاي څوي وه ۲۶ او دَ بنِي اشيرو دَ فرقي په فوځ بانْدِ فَجْعِيئيل دَ عُکران ۲۶
څوي وه ۲۷ او دَ بنِي نفتالِي دَ فرقي په فوځ بانْدِ اَحِيرع دَ عينان څوي وه ۲۷
۲۸ دا دَ بنِي اسرائيلو دَ خپلو فوځونو سره کوچونه وُو چه دوي کوچ وکړ ۲۸
۲۹ او موسىٰ حوباب دَ رَعوئِيل مديانِي څوي ته چه دَ موسىٰ خسر وه ۲۹
وويل چه مونږ هغه ځاي ته کوچ کوُو چه خداوند ويلي دِي چه هغه تاسو
له درکوم ته مونږ سره راشه نو مونږ به تا سره ښيگړه وکړو ځکه چه
خداوند دَ بنِي اسرائيلو سره دَ ښيګړي خبري کړي دِي ۳۰ نو ورته ئي وويل ۳۰
چه زه نه ځم بلکه خپلي زمکي ته او خپلي خپلخانِي ته ځم ۳۱ نو وئي ۳۱
ويل چه په مهربانئ سره مونږ مه پريږده ځکه چه ته په بيابان کښ څمونږ

منزلونه پيړلي نو ته به څمونږ لکه سترګي هسي يي ۳۲ او داسي به وشي ۳۲
چه که ته مونږ سره لاړلي نو هم په هغه ښيګړي سره چه مونږ سره
خداوند ښيګړه وکړي مونږ به په تا سره ښيګړه وکړو
۳۳ نو دَ خداوند له غره نه دري ورځي لار وکوچيدل او دَ خداوند ۳۳
دَ وعدي تابُوت دَ دريُو ورځو لار وړاندِ له دوي نه وکوچيد چه دَ دوي
دَپارَ دَ آرام ځاي ولټوي ۳۴ او دَ خداوند وريځ په دوي باندِ دَ ورځي په ۳۴
وقت دَ کوچيدلو کښ له ډيري نهٔ وه ۳۵ او داسي وشُو چه دَ تابُوت دَ ۳۵
کوچ په وقت کښ به موسیٰ ويل چه پاسه اي خداوند ستا دُ ښمنان
دِ ښواره واره شِي او چه ستا کينه‌کر شِي هغوي دِ ستا له مخي نه وتښتي
۳۶ او په وقت دَ کوزيدلو دَ هغه به يُي ويل چه اي خداوند ډيرو زرګونو ۳۶
بني‌اسرائيلو ته راوګرزه ◆

## يوولسم باب

۱ او داسي وشول چه قام ګيله کونکي شه دَ خداوند په غوږونو کښ يُي بد ۱
شکايت کاوه او خداوند واوريدل نو غضب يُي وجوشيد او په دوي کښ دَ
خداوند اور بل شه او دَ ډيري ترحد پوري يُي وسيزل ۲ نو قام موسیٰ ته ۲
چغي کړلي نو موسیٰ خداوند ته دُعا وکړه نو هغه اور مړ شه ۳ نو دَ دغه ۳
ځاي نوم تبعيراه وبللي شه ځکه چه دَ خداوند اور په دوي کښ بل شوي وه
۴ او هغه پرديسيي چه دَ دوي په مينځ کښ وه هغه حرص دَ شهوت ۴
وکړ نو بني‌اسرائيلو بيا وژړل او وُيُ ويل چه څوک به په موږ غوښي
وخوري ۵ راياد‌شه مونږ ته هغه کب چه مونږ به په مصر کښ ويريا ۵
خوړ او هغه تري او خټکي او ګندنا او پياز او هوګه ۶ او اوس څمونږ ۶
ځانونه وچ شول هيڅ ځيز نشته بي له دي نه چه څمونږ سترګي دغه
مَن ته وِيُ ۷ او مَن دَ دنريا دَ تخم په شان وه او نمونه يُ دَ مرغلري ۷
دَ نموني په شان وَه ۸ او قام به ګيرچاپير ګرزيدل چه يُي وانږوي بيا يُي ۸
په ميچن اوړه کړي يا يُي په بَغوي کښ وټکوي او په کټوو کښ يُي پاخه

کړي او کلوړي ترِ جوړ کړي او خوند ئي دَ تازه تيلو دَ خوند په شان وه
۹ او هر کله چه پرخه به په ډېرې بانډِ پرېوتله نو مَنْ به ورسره پرېوت ۹
۱۰ نو هر کله چه موسیٰ واورېدل چه قامِ دَ خپلو خېلخانو سره ۱۰
هر يو دَ خپلي خيمي په دروازي بانډِ ژړل دَ خداوند غضب ډېر وَجوشيد
او دا خيره دَ موسیٰ په سترګو کښں بده راغلله ۱۱ نو موسیٰ خداوند ته ووېل ۱۱
چه ولي دَ خپل بنده سره بدِي کوي او ولي ستا په سترګو کښں مهربانيِ
نه وِينم تر هسي حدَ پورې چه دَ دي ټولو قومونو بار دِ په ما بانډي
کېښودِ ۱۲ زه په دي ټول قام باردار شوي يم څه؟ يا دوي ځما نه پيدا شوِي ۱۲
دِي څه؟ تر هسي حدَ پورې چه ته ما ته وايي چه ته دوي په خپلي
غېږې کښں هغي زمکي ته واخله چه تا دَدوي دَ پلرونو نيکونو سره سوګند
کړي دي لکه دايي چه يَي روډوکِي په غيږ آخلي ۱۳ ما ځخه غوښي چرته ۱۳
دِي چه زه ئي دي ټول قام له ورکړم ځکه چه دوي ما ته ژاړِي او
وايي چه مونږ له غوښي راکړه چه وخورُو ۱۴ زه يَواځي طاقت نه لرم چه ۱۴
دا ټول قام پورته کړم ځکه چه دوي په ما بانډِ درانه دِي ۱۵ نو که دا شان ۱۵
ځما سره کوي نو ما مړ کړه چه ستا په سترګو کښں نعمت ومومم او دا
خپله بلا دِ نه وينم
۱۶ نو خداوند موسیٰ ته ووېل چه اويا تنَ سړِي دَ بني اسرائيلو له زړو نه ۱۶
هغه چه ته ئي پېژني چه دوي دَ قومونو زاړه دِي او دَ هغوي سرداران
دِي ما ته راجمعَ کړه او دوي دَ جماعت خيمي ته راوله نو دغه ځاي دِ
تا سره ودرېږِي ۱۷ نو زه به درکوز شم او تا سره به هلته خبرې وکړم ۱۷
او له هغه روح نه به څه واخلم چه په تا بانډِ دي نو په دوي بانډِ به
ئي کېږدم نو دوي به تا سره دَ قومونو بار پورته کړِي او ته به يُ يَوازي
نه پورته کوي ۱۸ او قام ته ووايه چه دَ صبا دَپارَ ځانونه پاک کړِئِ چه ۱۸
غوښي به خورئِ ځکه چه دَ خداوند په غوږونو کښں مو ژړلي او ويلي دِي
چه څوک به په مونږ بانډِ غوښي وخورِوي مونږ لرِه په مصر کښں خير وه

نو خداوند به تاسو له غوښې درکړي او تاسي به ئې خورئ ۱۹ او تاسو به نه يوه ۱۹
ورځ خورئ او نه دوه ورځې او نه پنځه ورځې او نه لس ورځې او نه
شل ورځې ۲۰ بلکه پوره مياشت به ئې خورئ تر هغه پوري چه ستاسو ۲۰
له سپيږمو نه راووځي او تاسو تر نه کرکه وکړئ ځکه چه تاسو هغه خداوند
سپک وګانړه چه ستاسو په مينځ کښ دي او د هغه د وړاندې مو وژړل
او ومو ويل چه ولې مونږ له مصر نه بهر راغلو ۲۱ نو موسیٰ وويل ۲۱
چه هغه قام چه زه د هغو په مينځ کښ يم شپږ لک پياده دي او
تا وويل چه زه به دوي له غوښې ورکړم چه پوره مياشت ئې دوي خوري
۲۲ نو د دوي د پاره به بزې ګډې او غوايان حلالولې شي څه؟ چه د دوي ۲۲
بس شي يا که د دوي د پاره به د درياب ټول کبان جمع کولې شي چه
د دوي بس شي ۲۳ نو خداوند موسیٰ ته وويل چه د خداوند لاس لنډ شه ۲۳
څه؟ اوس به ته ګوري چه خما خبره به تا له پوره شي او که نه

۲۴ نو موسیٰ ووت او قام سره ئې د خداوند په خبرو خبرې وکړلې او ۲۴
اويا سړي ئې د قام له زړونه جمع کړل او ګيرچاپېره ئې د خيمې نه ودرول
۲۵ نو خداوند په وريځ کښ راکوز شه او ده سره ئې خبرې وکړلې او له هغه ۲۵
روح نه ئې څه واخست چه په ده باندې وه او په هغه اوياؤ زړو ئې کېښود
او داسې وشو چه هر کله چه په دوي روح راغې نو نبوّت ئې کاوه ليکن
زيات نه شول ۲۶ او دوه سړي په ډېرې کښ پاتې شول چه د يو نوم اِلداد ۲۶
وه او د بل نوم مِيداد وه نو روح په هغو دواړو کښ ننوت او دوي له
هغه ليکليو شويو نه وُو ليکن خيمې ته و نه وتل نو دواړو په ډېرې کښ
نبوّت کاوه ۲۷ نو يو ځوان وزغليد او موسیٰ ئې خبر کړ چه اِلداد او مِيداد ۲۷
په ډېرې کښ نبوّت کوي ۲۸ نو يَشوع د نُون ځوي چه د موسیٰ خدمتګار ۲۸
وه او د ده له ځوانانو نه غوره وه جواب ورکړ چه اي موسیٰ خما خاوندَ
دغه منع کړه ۲۹ نو موسیٰ ور ته وويل چه خما د پاره ته غيرت خوري څه؟ ۲۹
کاشکې د خداوند ټول قام نبيان وي چه خداوند خپل روح په هغو باندې

کېښودلي
۳۰ ۳۱ ۳۰ بیا موسیٰ ډېرې ته لاړ هغه او زاره دَ بنيإسرائيل ۳۱ نو يَو باد
دَ خداوند له طرفَ راووت او مرزي له درياب را رواني کړلي او په ډېرې
ئې وغورزولي يَوه ورځ مزل قدر له هغه طرفَ او يَوه ورځ مزل قدر
له دې طرفَ گيرچاپېر له ډېرې نه او دوه گزَ قدر پورته دَ زمکي له مخ
۳۲ نه ۳۲ نو قام په دغه درسته ورځ کښ او درسته شپه کښ او صباح
له په درسته ورځ کښ ودرېدل او مرزي ئې جمع کړلي هغه چا چه
کمي جمع کړي وي هغه لس حومرّه وي او هغه ئې گيرچاپېر له ډېرې
۳۳ نه دَ خانونو دَپارَ وغوړولي ۳۳ او لا تراوسَ چه غوښې دَ دوي دَ غاښونو
په مېنځ کښ وي ورښې له شخوند وهلو نه په قام باندِ دَ خداوند غضب
۳۴ وجوشېد او خداوند قام په ډېرو لويو وهلو سره وواهه ۳۴ نو دَ دغه ځاي
نُوم قبرُوت هتاواهَ کېښود ځکه چه دوي هغه قوم چه چا حرص کړي وه
۳۵ هلته خښ کړ ۳۵ او له قبروت هتاواهَ نه قام حَصيروت ته کوچ وکړ نو
په حَصِيروت کښ وُو ٭

## دولسم باب

۱ ۱ او مريم او هارون په موسیٰ باندِ په سبب دَ هغي حبشيِ ښځي خبري
وکړي هغه چه دَ اخستلي وَه ځکه چه دهٔ حبشيِ ښځه اخستلي وه
۲ ۲ نو دوارو وويل چه يواځي خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي څه ځمونږ
۳ سره ئې دا رنګ خبري ونه کړي څه؟ نو خداوند واورېدل ۳ او هغه سړي
موسیٰ له ټولو سړو نه ډېر زيات حَلِيم وه چه دَ زمکي په مخ باندِ وُو
۴ ۴ نو خداوند سمدَلاسه موسیٰ او هارون او مريمي ته وويل چه
۵ تاسو دريواړه دَ جماعت خيمي ته ووځئِ نو دوي دريواړه ووتل ۵ نو
خداوند دَ وريځي په ستنو کښ راکوز شه او دَ خيمي په دروازه کښ
۶ ودرېد او هارون او مريم ئې وبلل نو دوي دواړه ووتل ۶ نو وئې ويل
چه څما خبره واورئِ چه که چرې له تاسو نه څوک دَ خداوند دَپارَ نبي وي

نو زه په رؤیا کښې هغه ته ښکاره کیږم په خوب کښې به هغه سره
خبري کوم ۷ لیکن زما بنده چه موسیٰ دي نو هغه داسي نه دي بلکه ۷
هغه زما په ټول کور کښې آمِین دي ۸ خُله په خُله ښکاره به هغه سره ۸
خبري کوم نه په رَمُوز سره او دَ خداوند تَجَلّی به وِيني نو ولي نه ويريږئ
چه تاسو زما په موسیٰ بنده پوري خبري کوئ
۹ نو دَ خداوند غضب په دوي دوارو باندِ وجوشيد او دي لاړ شه ۹
۱۰ نو چه له خيمي نه وريځ پورته شوله گوره مريمَ دَ واوري په شان ۱۰
کوړيِ شوه نو چه هارون مريمِ ته وکتل گوره چه کوړيِ وه ۱۱ نو ۱۱
هارون موسیٰ ته وويل چه اي زما خاوندَ مه کوه په مونږ باندِ هغه
خطا مه ږده چه مونږ نادانِي کړي ده او چه مونږ خطا کړي دَه ۱۲ نو ته ۱۲
دَ هغه مړي په شان مه کيږه چه دَ خپلي مور دَ رَحِم نه دَ خپلو راوتلو
په وقت کښې دَ هغه نيمه غوښه خسا شوي ده ۱۳ نو موسیٰ خداوند ۱۳
ته چغي کړلي او وَ ئي ويل چه اي اَللّه زه تاته زارِي کوم دا روغه کړه
۱۴ نو خداوند موسیٰ ته وويل چه که پلار ئي لاړي دَدي په مخ باندِ توکلي ۱۴
وي نو اووه ورځي به دا شرمنده نه وَه پاتي شوي خه؟ اووه ورځي دِ
دا له ډيري نه بهر منع کړلي شي او پس له هغه دِ راوستلي شي -
۱۵ نو مريمَ اووه ورځي بهر له ډيري نه منع کړلي شوله او قام کوچ نه ۱۵
کاوه تر هغه پوري چه څو مريمَ راوستلي شوله ۱۶ او پس له هغه قام ۱۶
له حَصِيرُوت نه کوچ وکړ او دَ پاران په بيابان کښې ډيره شول +

## ديارلسم باب

۱ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ۲ سړي وليږه چه ۱ ۲
دَ کِنعان دَ هغي زمکي جاسُوسِي وکړِي چه زه ئي بنيِ اسرائيلو له ورکوم
دَ هر قوم دَ پلارَ له پلرونو دَ هغو نه يوَ يوَ سړي وليږئ هر يو چه
په دوي کښې سردار وِي ۳ نو موسیٰ دَ پاران له بيابان نه موافق ۳
دَ خداوند په حکم سره ئي دوي وليږل ټول دوي هغه سړِي وُو چه دَ

۴ بنِي اسرائيلو سرداران وُو ۴ او دا دَ هغو نومونه دِي دَ راؤبين له
۵ فرقي نه شَمُوع دَ زكُوْر خوي ۵ دَ شمعُون له فرقي نه شافاط دَ حورِي
۶ ۷ خوي ۶ دَ يهُوْدَا له فرقي نه كاليب دَ يفَنّه خوي ۷ دَ يسّاكار له فرقي
۸ ۹ نه يجال دَ يُوسف خوي ۸ دَ افرايم له فرقي نه هوشيع دَ نُون خوي ۹ دَ
۱۰ بنيامين له فرقي نه فَلطِي دَ رافو خوي ۱۰ دَ زبُولُن له فرقي نه جدِيئِيل
۱۱ دَ سودِي خوي ۱۱ دَ يوسف له فرقي نه دَ منَسّي له فرقي نه جدِّي
۱۲ ۱۳ دَ سوسِي خوي ۱۲ دَ دان له فرقي نه عَمِيئِيل دَ جمَلِّي خوي ۱۳ دَ اشير
۱۴ له فرقي نه مَستُور دَ مِيخائِيل خوي ۱۴ دَ نَفتالي له فرقي نه نَجي دَ وُفسِي
۱۵ ۱۶ خوي ۱۵ دَ جاد له فرقي نه جويئِيل دَ ماكِي خوي ۱۶ دا دَ هغو سرو
نومونه دِي چه هغوي موسیٰ ليږلِي وُو چه دَ زمكي جاسُوسِي وكړي او
موسیٰ دَ هوشيع دَ نُون دَ خوي نوُم يهُوشُوع كيښود

۱۷ ۱۷ نو موسیٰ دوي وليږل چه دَ كِنعان دَ زمكي جاسُوسِي وكړي
او دوي ته ئې ووئيل چه دي خوا سُهيل طرف ته وخيژئ او غره ته ور
۱۸ وخيژئِ ۱۸ او زمكه وګورئِ چه څنګه دَه او هغه قامونه چه په كښِ
۱۹ اوسِي زوراور دِي او كه كمزورِي دِي لږ دِي او كه ډير دِي ۱۹ او هغه
زمكه چه دوي په كښ اوسِي څنګه دَه ښه ده كه ناكاره دَه او هغه
ښهرونه چه دوي په كښ اوسِي څنګه دِي دَ خيمو دِي يا دَ قلا دِي
۲۰ ۲۰ او هغه زمكه څنګه دَه څربه ده او كه ښواره ده وُنِي په كښ شته
او كه نشته او مضبوط شئِ او دَ هغي زمكي له ميوو نه څه واخلئِ
او هغه ورځي دَ نوُو انګورو ورځي وي

۲۱ ۲۱ نو دوي ور وختل او دَ صِين له بيابان نه ئې دَ رَحُوب پوري
۲۲ چه دَ حمات په لار كښ دَ زمكي جاسوسِي ئې وكړه ۲۲ سُهيل طرف ته
وختل او حَبرُون ته ورغلل او هلته اَخِيمان او شِيشاي او تَلماي
دَ عَناق څامن وُوْ او حِبرُون دَ مصر له صوعن نه اووه كالَ ورښبي
۲۳ آباد كړي شوِي وه ۲۳ او دوي دَ اَشكُول خوړ ته ورغلل او له هغه

ځايَ يُ يَوه ځانګه دَ يَوِي غوښي سره دَ انګورو پريکړله او په دوو تنو
ئي په يَو لرګي باندِ بارکړله څه اَنار او اِنځر ورسره ۲۴ نو هغه ځاي ۲۴
دَ اَشکول خوړ وبللي شه په سبب دَ هغي غوښي سره چه بني‌اسرائيلو
له هغه ځايَ پريکړي وه ۲۵ بيا پس له څلويښتو ورځو دَ زمکي له ۲۵
جاسُوسيءِ نه را وګرزيدل
۲۶ نو روان شول او راغلل موسیٰ ته او هارون ته او دَ بني‌اسرائيلو ۲۶
ټولو جماعت ته دَ پاران په بيابان کښ قادِش ته ورسيدل اوخبر ئي
هغو دواړو ته او ټول جماعت ته ورساوه او دَ هغي زمکي ميوه ئي
ور ته وښوله ۲۷ او خبر ئي کړل او وئي ويل چه مونږ هغي زمکي ته ۲۷
لاړُو هغه چه تا ورته ور ليږلي وُو او حَقَّه دا ده چه هغه پيِ او
شات بهوِي او دا دَ هغي ميوه ده ۲۸ ليکن هغه قام چه په هغه زمکه ۲۸
کښ اوسي زورآور دي او ښهرونه ئي ډيري لوي قلا لري او هلته
دَ عُناق ځامن هم مونږ وليدل ۲۹ دَ سَهيل په زمکه کښ عَماليقيان ۲۹
اوسيدونکي دِي او په هغه غرونو کښ حِتّيان او يَبوسيان او اَموريان
اوسيدونکي دِي او هغه درياب څنګه او دَ اَردَن په غاړه کِنعانيان
اوسيدونکي دِي ۳۰ ليکن کاليب هغه قام دَ موسیٰ دَ وړاندِ چپ کړل ۳۰
او وئي ويل چه مونږ ورخيژُو او دغه زمکه آخلو ځکه چه مونږ ئي
آخستي شُو ۳۱ او هغه سړِي چه دَده سره ختلِي وُو هغوي وويل چه ۳۱
مونږ طاقت نه لرُو چه هغه قام ته ور وخيژُو ځکه چه هغوي له مونږ نه
زورآور دِي ۳۲ نو په بني‌اسرائيلو کښ ئي دَ هغي زمکي بد خبر ښور کړ ۳۲
هغه چه دوي ئي جاسُوسيءِ له تلِي وُو ويل ئي چه هغه زمکه چه مونږ
په هغي کښ دَ جاسُوسيءِ دَپارَه تير شوِي يُو هغه داسي زمکه ده چه
خپل اوسيدونکِي خورِي او هغه ټول قام چه مونږ په هغي کښ وليدل
لوړ لوړ سړِي دِي ۳۳ او مونږ هلته لوي قدي وليدل دَ عُناق ځامن ۳۳
چه لوي قدي دِي نو مونږ په خپلو سترګو کښ لکه ملخان ښکاريدلو

او دا شان مونږ دَ هغوي په سترګو کښ هم وُو ✦

# څوارلسم باب

۱ آ نو ټول جماعت آوازونه خپل پورته کړل او چغي ئې ووهلي او قام
۲ په دغه شپه کښ ورژړل ۲ او ټولو بنيِ‌اسرائيلو موسیٰ او هارون
ته ګيلي وکړلي او ټول جماعت دوي ذوارو ته وويل چه کاشکي مونږ
دَ مصر په زمکه کښ مړه وي يا ارمان دي چه مونږ په دي بيابان
۳ کښ مړه وي ۳ او دَ څه دَپارَ خداوند مونږ دي زمکي ته راوستلو چه
په تُورو به پريوځو او ښځي او هلکان څمونږ به لوټ شي څه؟ څمونږ
۴ دَپارَ غوره نه ده څه؟ چه مصر ته ور وګرزو ۴ نو يَو بل ته سره
وويل چه سردار به مقرّر کړو او مصر ته به ور وګرزو
۵ ۵ نو موسیٰ او هارون دواړه دَ بنيِ‌اسرائيلو دَ جماعت دَ ټول
۶ ټولي دَ وړاندِ پړمخي پريوتل ۶ او يشُوع دَ نُون ځوي او کاليب دَ يَفُنَّه
ځوي له هغو کسانو نه چه دَ هغي زمکي جاسوسيِ ئې کړي وه خپل
۷ زروکي څيري کړل ۷ او دَ بنيِ‌اسرائيلو ټول جماعت سره ئې خبري وکړي
وئې ويل چه هغه زمکه چه مونږ په هغي کښ تير شوي يُو چه دَ
۸ هغي زمکي جاسُوسيِ وکړُو ډيره ښه زمکه ده ۸ که خداوند له مونږ نه
راضي وِي نو دغي زمکي ته به مونږ ننباسِي او مونږ له به دغه زمکه
۹ راکړي داسي زمکه چه پيَ او شات بهَوَي ۹ مګر تاسو په خداوند سرکښيِ
مه کويِ او دَ زمکي له قام نه مه ويريږيِ ځکه چه هغوي څمونږ ډوډيَ
دِي له هغو نه دَ هغو سورې تير شه او خداوند څمونږ سره دي له
هغو نه مه ويريږيِ
۱۰ ۱۰ ليکن ټول جماعت ويل چه دوي دواړه به کاڼړو ووېشتلي شولي
پس له هغه ټولو بنيِ‌اسرائيلو نه دَ خداوند لويِي دَ جماعت په خيمه کښ
۱۱ ښکاره شوله ۱۱ او خداوند موسیٰ ته وويل چه ترکومَ پوري به دا قام ما
په قهر کوي او ترکومَ پوري به اِيمان نه راوړي په ما په هغه وارو

۱۲ ښځانو باندې چه هغه ما دَدوي په منځ کښ کړي دِي ۱۲ زه به ئي په وبا
ووهم او بې ميراث به ئي کړم او تا به له دوي نه لوي او مضبوط قام
۱۳ جوړ کړم ۱۳ نو موسیٰ خداوند ته ووئيل چه مصريان به واورِي ځکه چه
۱۴ تا په خپل قوّت سره دا قام دَ دوي له منځ راخيژولي دي ۱۴ او دَ دي زمکي
اوسيدونکو ته به ووائِي هغو آوريدلي دِي چه ته خداوند دَ دغه قام
په منځ کښ يې هغه کسان اي خداوند چه ته هغو ته مخامخ ښکاره
شوې يې او ستا وريځ به هغو باندِ ولاړه دَه او ته دَ ورځي دَ وريځي
په ستونو کښ او دَ شپي دَ اور په ستونو کښ دَ دوي دَ وړاندِ تلونکي
۱۵ يې ۱۵ نو که ته دا اُمّت دَ يَو سړِي په شان مړ کړِي نو غير قامونه چه
۱۶ هغوي ستا خبر اوريدلي دي و به وائِي چه ۱۶ خداوند قدرت نه لاره
چه دا اُمت ئي هغي زمکي ته ننه‌يستلي وي هغه چه هغو ته ئي قسم کړي
۱۷ وه نو ځکه ئي دوي په بيابان کښ مړه کړل ۱۷ نو اوس زاري کوم چه خما
دَ خاوند قدرت لوي شي لکه چه تا خبري کړي وي او ويلي دِي وُو چه
۱۸ ۱۸ خداوند په غصّه صبرناک دي او ډير احسان کونکي دي گناه او بدي
بخښي ليکن بدان نه خلاصوي بلکه گناه دَ پلرونو په ځامنو دَ دريمي څلورمي
۱۹ پښتۍ پوري رسوي ۱۹ زه در ته زاري کوم چه دَدي امّت له شر نه تير
شه ځکه چه ستاسو رحمت لوي دَي او لکه چه دا امّت دِ له مصر
۲۰ نه تر دي وقت پوري وبخښل ۲۰ نو خداوند ووئيل چه موافق ستا دَ ويلو
۲۱ سره مې وبخښل ۲۱ ليکن په خپل ژوندون مې دِ قسم وي چه ټوله زمکه
۲۲ به دَ خداوند له لويئ نه ډکه شي ۲۲ هغه ټول سړي چه خما لويئ او خما
هغه واره نښاني چه ما هغه په مصر او په بيابان کښ کړي دِي ليدلي
ئي دِي او اوس ئي زه لس ځلَ ازميلي يم او خما ويلو ته ئي غوږ نه دي
۲۳ ايښي ۲۳ هغه زمکه به هيڅ‌کري و نه وينِي چه هغه ما دَ هغو دَ پلرونو دپاره
قسم کړي وه او هغه ټول کسان چه په قهر کړي ئي يم هغه به و نه
۲۴ وينِي ۲۴ ليکن کاليب بنده چه دَ هغه سره بل روح وه او خما متابعت

ئې پوره کړي دي نو هغې زمکې ته ئې ننه باسم چه دي وله ورغلي دي
۲۵ او دَده اولاد به هغه په ميراث واخلي ۲۵ او هغه عمالیقیان او
کِنعانيان به هغه دَره کښ اوسيدل نو صباح له وګرځئ او بيابان ته
دَ قلزم درياب په لاري وکوچيږئ
۲۶ ۲۶ او خداوند دَ موسیٰ او دَ هارون سره خبري وکړي و ئې ويل چه
۲۷ ۲۷ تر کومه پوري به دا شرير جماعت بخښم چه ما ته ګيلي کوي دَ
۲۸ بني اسرائيلو ګيلي هغه چه ما ته ګيلي کوي اوريدلي مې دي ۲۸ ووايه دوي
ته چه په خپل ژوندون مې دِ قسم وي چه خداوند وائي چه زه به خواه
مخواه هغه تاسو سره وکړم لکه چه تاسو خما په غوږونو کښ ويلي دي
۲۹ ۲۹ ستاسو جُسي به په دي بيابان کښ پريوځي ټول هغه شمار کړي
شوي له تاسو نه موافق ستاسو دَ ټول شمار سره له شلو کالو په
۳۰ پورته هغه کسان چه ما ته ئې ګيلي کړي دي ۳۰ هغې زمکې ته به هيڅوک
ننه نه ورځئ تاسو هغه ته ووايئ چه ما قسم کړي وه چه زه به خواه
مخواه تاسو په هغې کښ واوسوم - بې دَ کالب دَ يفنه دَ ځوي او دَ
۳۱ يشوع دَ نون دَ ځوي نه ۳۱ او هغه هلکان ستاسو چه تاسو ويلي دي
چه دوي به لوټ شي نو زه به ئې ورننه باسم نو هغه زمکه به وپيژني
۳۲ چه هغه تاسو سپکه وګڼله ۳۲ نو تاسو چه يئ ستاسو جُسي به په
۳۳ دغه بيابان کښ پريوځي ۳۳ او ستاسو ځامن به څلويښت کاله په بيابان
کښ شپانه شي او ګناه ستاسو به بار کړي تر هغه پوري چه ستاسو
۳۴ جُسي په بيابان کښ فنا شي ۳۴ لکه دَ هغو ورځو شمار چه تاسو
په هغو کښ دَ هغې زمکې جاسوسي کوله څلويښت ورځي وي يوه
ورځ به کال شي ګناهونه خپل به څلويښت کاله تاسو باروئ نو خما
۳۵ وعده ماتول به وپيژنئ ۳۵ زه خداوند يم ويلي مې دي چه دا به دَدي ټول
شرير جماعت سره وکړم چه ما ته ئې اِتفاق کړي دي په دي بيابان
کښ به فنا شي او په دي کښ به مړه شي

۳۶ ۳۶ لیکن هغه سړي چه هغوي موسیٰ لیږلي وُو چه دَ هغي زمکي
جاسُوسي وکړي او را وګرزیدل او ټول جماعتونه ئي دَه ته ولمسول په
۳۷ ګیله کولو دَ هغي زمکي سره ۳۷ نو هغه سړي چه هغه ناکاره بدي
۳۸ ئي دَ هغي زمکي مشهوروله دَ خداوند دَ وړاندِ په وُبا مړه شول ۳۸ لیکن
یَشُوع دَ نُون ځوي او کالب دَ یُفنّه ځوي له هغو سړو نه چه هغوي تلي
وُو چه دَ هغي زمکي جاسُوسي وکړي وپائیدل
۳۹ ۳۹ او موسیٰ ټولو بنيِ اِسرائیلو ته دا خبري وکړي نو هغه امّت ډیر
۴۰ وژړل ۴۰ بیا له هغه صباح پاڅیدل او دَ غره سر ته وختل ویل ئي
چه مونږ دا یُو هغه ځاي ته ځیږُو چه هغه خداوند ویلي دِي ځکه چه
۴۱ مونږ خطا کړي دَه ۴۱ نو موسیٰ وویل چه ولي دَ خداوند له ویلو تیریږئ
۴۲ دا فائده نه رَسَوي ۴۲ مه ځیږئِ ځکه چه خداوند ستاسو په مینځ کښ
۴۳ نشته چه دَ خپلو دُښمنانو دَ وړاندِ مات نه شئِ ۴۳ ځکه چه عمالیقیان
او کِنعانیان ستاسو په مخ کښ دِي تاسو به په تُورو پریوځئِ تاسو له یَهوَه
۴۴ نه ګرزیدلي یئِ نو خداوند به تاسو سره نه وِي ۴۴ لیکن هغوِي سرکښي
وکړله او دَ غره سر ته وختل لیکن دَ خداوند دَ وعدي تابُوت او موسیٰ
۴۵ دَ ډیري له مینځ نه لاړ نه شول ۴۵ نو عمالیقیان او کِنعانیان چه په
دغه غره کښ اوسیدل راکوز شول او دوي ئي ووهل او دوي ئي تر
حرماه پوري مات کړل +

# پنځلسم باب

۱ ۲ ۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي وئي ویل چه ۲ بنيِ اسرائیلو سره
خبري وکړه او ورته ووایه چه هر کله چه تاسو دَ خپلي استوږي زمکي
۳ ته ورشئِ هغه چه زه ئي تاسو له درکوم ۳ او تاسو دَ خداوند دَپارَ دَ اور
قرباني وکړئِ یا دَ نذر پوره کولو دَپارَ ذبیحه وکړئِ یا دَ نفل قرباني وکړئِ
یا په اختروِنو خپلو کښ دَ خوشبوئِي دَ خداوند دَپارَ له غوایانو نه یا له بزو
۴ ګډو نه ۴ نو هغه چه خپله قرباني دَ خداوند دَپارَ کوي لسمه حصه

میده دِ دَ خلورمي حصي دَ هِین دَ تیلو سره اخښلي دَ هديي دَپارَ راوړي
٥ ٥ او شراب دَ تویولو دَ قربانئِ دَپارَ څلورمه حصه دَ هِین دَ سوزلو پهَ
٦ قربانئِ یا په ذبیحه باندِ دَ هر یو وري سره وکړه ٦ یا دَ ګډ دَپارَ دَ میدي
قرباني له دوو لسمو حصو میدي نه دَ دریمي حصي دَ هِین دَ تیلو سره
٧ اخښلي شوي وکړه ٧ او شراب دَ تویولو دَ قربانئِ دَپارَ دریمه حصه دَ
٨ هِین وکړه دَ خوشبوئِ دَ خداوند دَپارَ ٨ او چه تا سخوندر دَ سوزلو دَ
قربانئِ دَپارَ یا ذبیحه دَ نذر پوره کولو دَپارَ یا دَ سلامتیا قرباني دَ خداوند
٩ دَپارَ وکړئِ ٩ نو په هغه سخوندر باندِ دَ میدي قربانئِ دري لسمي حصي
١٠ له میدي نه دَ نیم هِین دَ تیلو اخښلي شوي قرباني دِ وکړي ١٠ او دَ تویولو
دَ قربانئِ دَپارَ نیم هِین شراب دَ اور دَ خوشبوئِ دَ خداوند دَپارَ قرباني
١١ وکړه ١١ داسي دِ وکړلي شي دَ هر یو غوایه دَپارَ او هم دَ یو ګډ دَپارَ
١٢ او دَ پسه دَپارَ له ګډو نه یا له بزو نه ١٢ لکه هغه شمار چه تاسو کوئِ
١٣ هم هغه شان تاسو کوئِ دَ هر یو دَپارَ موافق دَ شمار دَ هغو ١٣ هر وطني
دِ هم دغه شان کوِي په نزدي کولو کښ دَ اور قرباني خوشبوئِ دَ خداوند
١٤ دَپارَ ١٤ او که مسافر په تاسو کښ اوسِي یا هر څوک چه په مینځ ستاسو
کښ په پیړو ستاسو کښ وِي او دَ خوشبوئِ اور ئِ دَ خداوند دَپارَ
١٥ وکړِ نو لکه چه څنګه تاسو کوئِ هغه شان دِ هغه کوِي ١٥ تاسو جماعت
له او هغه مسافر له چه په تاسو کښ اوسیدونکي وِي دَ همیشه دَپارَ
ستاسو په پیړو کښ یو حکم دي دَ مسافر مثال دَ خداوند دَ وړاندِ ستاسو
١٦ په مثال دي ١٦ ستاسو دَپارَ او دَ هغه مسافر دَپارَ چه په تاسو
کښ اوسِي یو تورٰت او یو عدالت به وِي
١٧ ١٨ ١٧ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئِ ویل چه ١٨ بني اسرائیلو
سره خبري وکړه او ورته ووایه چه هر کله چه تاسو هغه زمکي ته
١٩ ننوځئِ چه زه ستاسو بیوونکي یم ١٩ نو داسي به وشي چه چرِ تاسو
دَ هغي زمکي ډوډئِ خورئِ نو دَ خداوند دَپارَ دَ پورته کولو قربانئِ کوئِ۔

٢٠ تاسو دَ خپلو ورنبو اخښلو شويو اوړو يو ګوړي دَ پورته کولو ٢٠
قرباني پورته کوئ لکه دَ درمند دَ پورته کولو قرباني چه مو پورته کوله
داسي يي پورته کوئ ٢١ تاسو دَ خداوند دَپارَ له خپلو ورنبو اخښلو شويو ٢١
اوړو نه به پيړو خپلو کښ دَ پورته کولو قرباني ورکوئ

٢٢ او که تاسو خطا شوئ او دا ټول حکمونه چه خداوند دَ موسیٰ سره ٢٢
په هغو باندِ خبري کړي وي تاسو و نه کړل ٢٣ هغه ټول حکمونه چه ٢٣
خداوند تاسو ته دَ موسیٰ په لاس فرمايلي وُو له هغي ورځي نه چه خداوند
فرمايلي وُو ورپسي په پيړو ستاسو کښ ٢٤ نو که دَ جماعت له سترګو ٢٤
نه پټ په خطا سره وکړي شي نو ټول جماعت دِ يو سخوندر دَ سوزلو
قرباني وکړي دَ خداوند دَ خوشبوئي دَپارَ دَ هغه دَ ميدي دَ قربانئ او
دَ هغه دَ تويولو دَ قربانئ سره دَ عادت په شان او يو پسه له چيلو
نه دَ خطا دَ قربانئ دَپارَ ٢٥ نو کوهين دِ دَ بني اسرائيلو دَ ټول جماعت ٢٥
دَپارَ کفارت وکړي نو هغوي به وبخښلي شي ځکه چه دغه خطا وه
نو که دوي قرباني خپله دَ اور قرباني دَ خداوند دَپارَ راوستله او دَ خطا
قرباني خپله يي دَ خداوند دَ وړاندِ دَ خپلي خطا دَپارَ راوستله ٢٦ نو دَ ٢٦
بني اسرائيلو ټول جماعت به وبخښلي شي او هم هغه مسافرچه به دوي
کښ اوسيدونکي وي ځکه چه دا له ټولو امتونو نه په خطا سره شوي دَه

٢٧ او که يو سړي په ناپوهئ سره خطا وکړله نو دَ يو کال چيلي دِ دَ ٢٧
خطا دَ قربانئ دَپارَ قرباني کړي ٢٨ نو کوهين دِ له هغه سړي چه هغه ٢٨
خطا شوي دي او په ناپوهئ سره يي خطا کړي دَه دَ خداوند دَ وړاندِ کفاره
ورکړي چه دَ هغه دَپارَ کفاره شي او هغه وبخښلي شي ٢٩ په بني اسرائيلو ٢٩
کښ دَ وطني دَپارَ او دَ هغه مسافر دَپارَ چه دَ دوي په مينځ کښ اوسي
دَ هر يو خطا کوونکي دَپارَ يو شريعت دي ٣٠ او هغه سړي چه له وطنيانو ٣٠
نه وي او که له مسافرانو نه وي چه په قصد سره ګناه وکړي نو دي دَ
خداوند سپکوالي کوي نو دغه سړي دِ له قومونو خپلو نه جدا کړلي شي ٣١ ځکه ٣١

چه ده کلام دَ خداوند سپک کړ او حکم ئي مات کړ خواه دِ دغه
سړي جدا کړي شي دَ ده ګناه په ده بانډِ ده
۳۲ ۳۲ او هر کله چه بني اسرائيل په بيابان کښې وُو نو يو سړي
۳۳ ئي وموند چه دَ سبت په ورځ ئي خاشاک کاوه ۳۳ نو هغو چه
هغه موندلي وه چه خاشاک ئي کاوه موسىٰ او هارون ته او ټول
۳۴ جماعت ته ئي وراندِ کړ ۳۴ نو هغو په بنديخانه کښې واچاوه ځکه
چه ده ته نه وه ښکاره کړي شوي چه دَ ده سره به څه کولي شي
۳۵ ۳۵ نو خداوند موسىٰ ته وويل چه دغه سړي دِ ووژللي شي ټول جماعت
۳۶ دِ ئي بهر له ډيري نه سنګسار کړي ۳۶ او دَي ټول جماعت بهر له
ډيري نه وويست او سنګسار ئي کړ نو مړ شه لکه چه خداوند موسىٰ
ته حکم کړي وه
۳۷ ۳۷ بيا خداوند دَ موسىٰ سره خبري وکړې و ني ويل چه ۳۸ بني اسرائيلو
سره خبري وکړه او ورته ووايه چه خپلو ځانونو له دِ په خپلو پيړو
کښې دَ خپلو جامو په لمنو کښې جالرونه جوړوي او دَ لمني په جالر
۳۹ بانډِ دِ آسماني رنګي مزي ولګوي ۳۹ نو دغه به ستاسو جالروي نو
دغه به تاسو وينيئِ او ټول حکمونه به دَ خداوند يادَويئِ او عمل پرِ کويئِ
او دَ خپلو زړونو او دَ سترګو متابعت مه کويئِ هغه چه دَ هغو په
۴۰ متابعت کښې بدکاران شوي يئِ ۴۰ دَپارَ دَدي چه تاسو ياد لريئِ او عمل
۴۱ کويئِ په ټولو حکمونو ځما بانډِ او دَ خپل اَلله دَپارَ مُقَدَّسين شئ ۴۱ زه
خداوند اَلله ستاسو يم هغه چه دَ مصر له زمکي ئي تاسو وکښلئِ دَپارَ
دَدي چه زه ستاسو اَلله شم زه يَهوَهٔ اَلله ستاسو يم +

## شپاړسم باب

۱ ۱ او قورح ځوي دَ يِصهار ځوي دَ قهات ځوي دَ لاوِي او داثان او
۲ اَبيرام دَ اَلياب ځامن او اُون دَ پلَت ځوي بني روبين ۲ سره دَ بعضي
سړو له بني اسرائيلو نه چه دوه سوَ پنځوس تنَ سرداران دَ جماعت چه

۳ له جماعت نامداران بللي شوي وُو دَ موسیٰ په مقابل پورته شول ۳ نو
په موسیٰ او په هارون باندِ جمع شول او دوارو ته ئي وويل چه
بس دي تاسو له چه ټول جماعت مقدس دي او خداوند دَ هغو
په مينځ کښِ دي نو څه دَپارَ خپل ځانونه تاسو دَ يهوه دَ جماعت دَ
پاسه کوئِ
۴ ۵ ۴ هر کله چه موسیٰ واوريده نو پرمخ پريوت ۵ بيا قورح او ټول
جماعت دَ هغه خبري وکړي و ئي ويل چه صباح له به خداوند هغه
ښکاره کړِي هغه چه ده له دي او چه څوک مُقدّس دِي چه هغه
خپل ځان ته نزدي کړِي نو هغه څوک چه دي غوره کړِي نو هغه به
۶ ځان ته نزدي کړِي ۶ دا وکړئِ دَ ځانونو دَپارَ مجمرونه واخلئِ قورح او
۷ ټول جماعت دَ هغه ۷ او صباح له په کښِ اور واچوئِ او بخور پرِ دَ
خداوند دَ وړاندِ کيږدئِ نو هغه سړي چه خداوند ئي غوره کړي هغه مُقدّس
۸ دَي بس دَي تاسو له اي بني لاوي ۸ او موسیٰ قورح ته وويل چه واورئِ
۹ اى بني لاوي ۹ لږ دِي تاسو له څه؟ چه دَ اسرائيل الله تاسو له جماعت
جدا کړِي يئِ دَپارَ دَ دي چه تاسو ځان ته نزدي کړِي چه دَ خداوند دَ
مسکن خدمت کوئِ او دَ جماعت دَ وړاندِ دَ هغو دَ خدمت دَپارَ ودريږئِ
۱۰ ۱۰ نو ته ئي نزدي کړلي او ستا ټول وروڼه بني لاوي له تا سره نو اوس
۱۱ کهانت هم غواړئِ ۱۱ نو اوس تا او ستا ټول جماعت خداوند ته اتفاق کړي
۱۲ دي او هارون څوک دي چه تاسو هغه ته ګيلي کوئِ ۱۲ نو موسیٰ څوک
واستاوه چه داتان او ابيرام دَ اِلياب دواړه ځامن راوبولي نو دواړو
۱۳ وويل چه موږ نه خيژو ۱۳ دا لږه خبره ده څه؟ چه تا له زمکي نه راوخيژولو
چه پيِ او شات ئي بهيَږل چه موږ په بيابان کښِ مړه کړي او دا هم چه
۱۴ ته خپل ځان په موږ باندِ سردار کړي ۱۴ دا رنګ تا موږ زمکي ته نه يُو
راوستلي چه هغه پيِ او شات بهَوي او نه دِ موږ له دَ فصل او دَ
انګورو حصه راکړي دَه ته دَ دي سړو سترګي وباسي څه؟ موږ نه خيژو

١٥ ١٥ نو موسىٰ ډير په غصّه شه او خداوند ته ئې وويل چه دَ دوي
دَ هديې قربانۍ ته مه گوره نه مې له دوي نه يَو خر اخستي دي او نه
١٦ مې دَ دوي دَ يَو تن سره بد کړي دي ١٦ او موسىٰ قورح ته وويل چه ته
او ستا ټول جماعت دَ خداوند دَ وړاندې صباح له ته او دوي او هارون
١٧ حاضر شئ ١٧ او هر يَو خپل مجمر واخلئ او بخور په کښې واچوئ او
هر يَو خپل مجمر دَ خداوند په مخ کښې وړاندې کړئ دوه سوَ پنځوس
١٨ مجمر او ته او هارون هم هر يَو خپل مجمر ١٨ نو دوي هر يَو خپل
مجمر واخست او اور ئې په کښې واچاوه او بخور ئې پرې کښېښودل او
دَ جماعت دَ خيمې دروازې ته دَ موسىٰ او دَ هارون سره ودريدل-
١٩ ١٩ او قورح ټول جماعت دَ جماعت دَ خيمې دروازې ته په هغو باندې
٢٠ جمع کړې نو دَ خداوند لويې ټول جماعت ته ښکاره شوله ٢٠ نو خداوند دَ موسىٰ
٢١ او دَ هارون سره خبرې وکړې و ئې ويل چه ٢١ دَ دې جماعت له مېنځ
٢٢ تاسو دواړه جدا شئ څکه چه زه ئې په سترگه رپ کښې هلاکوم ٢٢ نو
دواړه پړمخ پريوتل او و ئې ويل چه اې اَلله ته دَ ټول بشر دَ روحونو
اَلله يې نو چه يَو سړي خطا وکړې نو ته به ټول جماعت باندې غُصّه
٢٣ کوې څه؟ ٢٣ نو خداوند دَ موسىٰ سره خبرې وکړې و ئې ويل چه —
٢٤ ٢٤ جماعت سره خبرې وکړه وواېه چه تاسو گيرچاپېره دَ قورح او دَ داتان
٢٥ او دَ اَبيرام له مسکن نه لرې شئ ٢٥ نو موسىٰ پاسيد او داتان او اَبيرام
٢٦ له لاړ شه او مشران دَ بني‌اسرائيلو ورپسې لاړل ٢٦ نو دَ جماعت سره
ئې خبرې وکړې و ئې ويل چه دَ دې باغي قوم له خيمو نه جدا شئ او
دَ دوي هيڅ څيز مه مسه کوئ هسې نه چه تاسو دَ دوي په ټولو
٢٧ خطاؤ کښې هلاک شئ ٢٧ نو دوي گيرچاپېره دَ قورح او دَ داتان او دَ
اَبيرام له مسکن نه لرې شول او داتان او اَبيرام ووتل او دَ خپلو
ښځو او دَ ځامنو او دَ وړو سره دَ خپلو خيمو په دروازه باندې ودريدل
٢٨ ٢٨ نو موسىٰ وويل چه په دې به تاسو پوه شئ چه زه خداوند رالېږلې يم

چه دا ټول کارونه وکړم او دا کارونه څما له خپل خيالَ نه دِي -
۲۹ ۲۹ که دا سړي دَ ټولو سړو دَ مرګ په شان مړه شول او دَ ټولو سړو
۳۰ په شان نظر پرِ وشي نو زه دَ خداوند استاځي نه يم ۳۰ مګر که
خداوند يو نوي کار پيدا کړي او زمکه خپله خوله وازه کړي او دوي
او هرڅه چه دَ دوي دِي ونغړي او دوي عالمِ ارواح ته ورکوز شي
نو پوه به شئ چه دي سړو دَ خداوند سپکوالي کړي دي
۳۱ ۳۱ نو هر کله چه له دي ټولوخبرو ويلو نه خلاص شه نو زمکه
۳۲ وچاودله هغه چه دَ دوي دَ لاندِ وَه ۳۲ او زمکي خپله خوله وازه کړله
او دوي او دَ دوي کورونه او ټول سړي چه دَ قورح وُو دَ هغه دَ ټولو
۳۳ مالونو سره ئي ونغړدل ۳۳ نو دوي او هرڅه چه دَ دوي وُو ژوندِي
عالمِ ارواح ته کوز شول او زمکه پرِ باندِ هواره شوله نو دَ جماعت
۳۴ له منځَ هلاک شول ۳۴ او ټول بنِي‌اسرائيل هغه چه کيرچاپير له
دوي نه وُو دَ دوي له چغو نه وتښتيدل ځکه چه دوي وويـل
۳۵ چه هسي نه چه زمکه موږ ونغړي ۳۵ او له خداوند نه
اور راووت او هغه دوه سوَ پنځوس سړي هغه چه بخور ئي نزدي کړي
وه وئي خوړل
۳۶ ۳۷ ۳۶ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي وئي ويل چه ۳۷ دَ هارون
ځوي اَليعازار کوهين ته ووايه چه مجمرونه له لمبو نه پورته کړه او
۳۸ هغه اور دغه ځاي ولونه ځکه چه دوي مُقَدّس شوي دِي ۳۸ دغه دَ
خطاکارانو مجمرونه چه دَ خپلو ځانونو سره ئي بد کړي دِي نريَ نريَ تختي
دِ کړِي دَپارَ دَ مذبح دَ پردي ځکه چه دوي دغه دَ خداوند په مخ کښ وړاندِ
کړي دِي نو مُقَدّسي دِي نو دغه به دَ بنِي‌اسرائيلو دَپارَ نښانه وِي -
۳۹ ۳۹ نو اَليعازار کوهين دَ مسو مجمرونه واخستل هغه چه سيزلو شوِو
۴۰ وړاندِ کړِي وُو او دَ مذبح دَ پردي دَپارَ ئي پلن وټکول ۴۰ چه دَ بنِي‌اسرائيلو
دَپارَ يادګاري وِي چه پرديسي سړي چه دَ هارون له اولاد نه وِي

دَ یهوَوَه دَ وړاندِ دِ دَ بخور کولو دَپارَ نژدي را نه شِي چه دَ قورح او
دَ هغه دَ جماعت په شان نه شِي لکه چه ده سره خداوند دَ موسیٰ
له لاسه خبري کړي وي
۴۱ ۴۱ نو صباح له دَ بنیِ اسرائیلو ټول جماعت موسیٰ او هارون
۴۲ ته ګِلي وکړي و ئي ویل چه تاسو دَ خداوند امت ووژه ۴۲ او هرکله
چه جماعت په موسیٰ او په هارون جمع شول نو دواړه دَ جماعت
خیمي ته ور وګرزیدل او څه ګورِي چه هغه ورېځي پټه کړي وَه او دَ
۴۳ خداوند لوېي ښکاره شوي وَه ۴۳ نو موسیٰ او هارون دَ جماعت دَ خیمي
۴۴ دَ وړاندِ راغلل ۴۴ نو خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه
۴۵ ۴۵ دواړه دَ دغه جماعت له مینځَ لرِي شئِ څکه چه دوي په سترګه رپ
۴۶ کښ هلاکوم نو دواړه پړمخ پرېوتل ۴۶ بیا موسیٰ هارون ته وویل چه
مجمَرَ واخله او اور په کښ له پاسَ دَ مذبح نه واچوه او بخور پرِ کیږده
او په تلوار ئي جماعت له یوسه او دَ هغو دَپارَ کفاره ورکړه څکه چه دَ
۴۷ خداوند له طرفَ غصّه راوتلي دَه او وبا شروع شوي ده ۴۷ نو لکه چه موسیٰ
وویل هارون واخست او دَ جماعت مینځ ته ور وزغلید او څه ګورِي چه
وُبا په اُمّت کښ شروع شوي وه نو بخور ئي کښیښود او دَ اُمّت دَپارَ
۴۸ ئي کفاره ورکړه ۴۸ او دَ مړو او دَ ژوندو په مینځ کښ ودرید نو وُبا
۴۹ بنده شوله ۴۹ نو هغه چه په وُبا باندِ مړه وُو څوارلس زرَ او اووه سوَ
۵۰ وُو بي له هغو نه چه دَ قورح په سبب مړه وُو ۵۰ پس له هغه هارون دَ
دَ جماعت دَخیمي دروازي ته موسیٰ له راوګرزید او وُبا بنده شوله ❊

# اوولسم باب

۱ ۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ویل چه ۲ بني اسرائیلو سره
۲ خبري وکړه او له دوي نه یوَه یوَه همسا دَ هر یوَ پلار له کورَ له ټولو
مشرانو دَ دوي په موافق دَ کود دَ پلرُونو دَ دوي سره دولس همساګاني
۳ واخله او دَ هر یوَ نُوم دَ هغه په همسا باندِ ولیکه ۳ او دَ هارون

نوم دَ لاوِي په همسا بانډِ ولیکه څکه چه دَ دوي دَ پلرونو دَ کور په
۴ سر يوه همسا ده ۴ او دغه دَ جماعت په خیمه کښ دَ شهادت دَ
۵ وړاندِ چه هلته زه تاسو سره يو ځاي کيږم کيږده ۵ نو داسي به وشي
چه هغه سړي چه زه ئي غوره کوم دَ هغه همسا به غوټئِ وکړي نو زه به دَ
بنيِ‌اسرائیلو گِلي هغه چه دوي له تاسو گِلي کولي له ځان لري کړم
۶ ۶ نو موسیٰ دَ بنيِ‌اسرائیلو سره خبري وکړي نو دَ هغو ټولو مشرانو
يوه يوه همسا دَ هر مشر دَ پلار موافق دَ کور دَ پلرونو دَ دوي دولس
۷ همسا ورکړلي او دَ هارون همسا دَ دوي دَ همساؤ په مینځ کښ وه ۷
نو موسیٰ همساگاني دَ خداوند دَ وړاندِ دَ شهادت په خیمه کښ کښیښودلي
۸ ۸ او داسي وشو چه صباح له موسیٰ دَ شهادت خیمي ته ننوت اوګوري
چه دَ هارون همسا چه دَ لاوِي دَ کور دَ پلار وه غوټئِ ئي کړي وي او
۹ غوټئِ ئي سپړدي وي او گلونه ئي کړي وُو او پاخه بادام ئي نیولي وُو ۹ نو
موسیٰ ټولي دَ خداوند له مخي نه ټولو بنيِ‌اسرائیلو ته را وکښلي نو هغو
۱۰ وکتل هر يو خپله همسا واخستله ۱۰ او خداوند موسیٰ ته وويل چه دَ
هارون همسا دَ سرکښانو دَ نښاني دَ ساتلو دَ پاره دَ شهادت
دَ وړاندِ بیا داوړه نو ته گِلي دَ دوي له ما نه لري لره دَ پاره دَ
۱۱ دي چه دوي مړه نه شي ۱۱ نو موسیٰ وکړل لکه چه ورته خداوند
۱۲ حکم کړي وه هم هغه شان ئي وکړل ۱۲ بیا بنيِ‌اسرائیلو دَ موسیٰ
سره خبري وکړي و ئي ويل چه گوره مونږ مړه شولو او هلاک
۱۳ شولو او مونږ ټول هلاک شولو ۱۳ هر څوک چه دَ خداوند مسکن ته
نزدي شي نو مړي نو مونږ به ټول مړو شو؟ ✣

## اتلسم باب

۱ ۱ بیا خداوند هارون ته وويل چه دَ مقدِس گناه به په تا او ستا
په ځامنو او درسره ستا دَ پلار په خاندان وِي او ستا بو دَ کهانت
۲ گناه به په تا او ستا په ځامنو وِي ۲ او هم خپل ورونړه دَ لاوِي

فرقه چه ستا دَ پلار فرقه ده هغوي دَ ځان سره نزدي کړه نو هغوي
به تا ته نزدي شي او ستا خدمت به کوي او ته او ستا ځامن درسره
۳ دَ شهادت دَ خيمې دَ وړاندِ ۳ نو دوي به ستا ساتنه او دَ ټولې خيمې
ساتنه کوي ليکن دَ مَقدِس لوښو ته او مذبح ته به نه نزدي کيږي چه
۴ دوي او تاسو مړه نه شئ ۴ دوي دِ تا سره پيوند شي او دَ جماعت
دَ خيمې ساتنه دِ کوي دَ ټولې خدمت دَ خيمې دَپارَ او پردَي سړي دِ تاسو
۵ ته نه نزدي کيږي ۵ دَ مَقدِس ساتنه او دَ مذبح ساتنه تاسو کوئ
۶ دَپارَ دَ دي چه بيا په بني‌اسرائيلو باندِ قهر نه وِي ۶ او گورئ ما ستاسو
وروڼه لاويان دَ بني‌اسرائيلو له مينځ واخستل او دَ خداوند دَپارَ تاسو
۷ ته بخښنه وکړي شوله چه دَ جماعت دَ خيمې خدمت کوي ۷ ته او ستا
ځامن درسره خپل کهانت دَ مذبح دَ هر څه کار سره کوئ او هغه
چه دننه په پرده کښ دي هم تاسو خدمت کوئ ما کهانت مِ په بخښنه
تاسو ته درکړي دي او هغه پردَي سړي چه نزدي کيږي هغه دِ ووژلي شي
۸ ۸ بيا خداوند هارون ته وويل چه گوره دَ خپلو پورته کولو دَ قربانو
ساتنه دَ بني‌اسرائيلو دَ ټولو مُقَدّسو سره مِ تا له درکړه دا مِ تا له
۹ او ستا ځامنو له دَ هميشه حکم په شان حق دَ مسح کيدو درکړه ۹ له ټولو
پاکو څيزونو نه چه له اورَ وِي دغه به ستا دَپارَ وِي ټولې قربانۍ دَ دوي
سره دَ ټولو دَ ميدې دَ قربانو دَ دوي او سره دَ ټولو دَ خطا دَ قربانو
دَ دوي او سره دَ ټولو دَ گناه دَ قربانو دَ دوي هغه چه دوي ما له راوړي
۱۰ هغه ستا او ستا دَ ځامنو دَپارَ له پاکو نه پاک شي ۱۰ نو له پاکو نه
پاکْ څيزونه ته خوره هر نارينه دِ يې خوري دغه ستا دَپارَ مُقَدّسي دِي
۱۱ ۱۱ او دا ستا دَپارَ دي دَ دوي له بخښنو نه دَ پورته کولو قربانۍ سره
دَ بني‌اسرائيلو دَ ټولو خوځولو دَ قربانو تا له او درسره ستا ځامنو له
او ستا لُوڼو له مِ دا دَ هميشه حکم په شان درکړي دي هرڅوک
۱۲ چه ستا په کور کښ پاک وِي نو له دغو نه دِ خوري ۱۲ ټول غوړه تيل

او تول غوره شراب او غنم دَ دغو غوره میوه هغه چه دوي خداوند
له ورکوي هغه مِ تا له درکړې دي ۱۳ هر څه چه دَ دوي په زمکه کښ ۱۳
دِي دَ هغو نوی میوه چه دوي خداوند ته وړاندِ کوي هغه به ستا وِي
هر څوک چه ستا په کور کښ پاک وِي دغه دِ خوري ۱۴ هر څِیز چه په ۱۴
بني‌اسرائیلو کښ حرام کړی شوي وِي هغه به ستا وِي ۱۵ هر یو رَحِم ۱۵
پرانتونکي له هري جُسي نه چه دوي ئي خداوند ته وړاندِ کوي له بسرو نه
وِي او که له خارویو نه وِي هغه به ستا وِي لیکن ته دَ سړو دَ وړنبو
پیدا شویو فدیه خواه مخواه ورکړه او دَ ناپاکو خارویو دَ وړنبو پیدا شویو فدیه
خواه مخواه ورکړه ۱۶ او فدیه دَ هغه دَ میاشتي له هلک نه موافق ستا ۱۶
دَ حِساب سره پنځه متقالَ سپین زر دَ مَقدِس په متقال چه هغه شل
جِیراه کیږي فدیه ورکړه ۱۷ لیکن دَ غوایانو دَ وړنبي پیدا شوي او دَ ګډو ۱۷
وړنبي پیدا شوي او دَ بزو دَ وړنبي پیدا شوي دَ دغو فدیه مه ورکوه دغه
مُقَدَّس دِي بلکه دَ دغو وِیني په مذبح باند چنړکاؤ کوه او وازده ئي دَ اور
دَ قربانئ دَپارَ سیزه چه دَ خداوند دَپارَ خوشبوئي وِي ۱۸ او غوښه دَ هغي به ۱۸
ستا وِي لکه دَ خوځولو دَ قربانئ سِینه او دَ هغي ښي وړون ستا دي
۱۹ دَ مُقَدَّسو څِیزونو ټولي دَ پورته کولو قربانئ هغه چه بني‌اسرائِیل ئي ۱۹
دَ خداوند دَپارَ پورته کوي هغه مِ تا له او درسره ستا ځامنو له او ستا
لُونړو له دَ همیشه حکم په شان درکړلي دَ مالګي وعده همیشه دَ خداوند دَ
وړاندِ تا له او درسره ستا اولاد له دَه
۲۰ بیا خداوند هارون ته وویل چه دَ دوي په زمکه کښ به ته میراث ۲۰
وا نه خلي او دَ دوي په مینځ کښ به ستا حِصّه نه وِي ستا حِصّه او ستا
میراث دَ بني‌اسرائیلو په مینځ کښ زه یم ۲۱ او ګوره هره لسمه حِصّه چه ۲۱
په بني‌اسرائیلو کښ ده هغه مِ لاویانو له دَ هغه خدمت په بدل کښ
میراث ورکړي ده چه هغه دوي دَ جماعت دَ خیمي خدمت کوي ۲۲ نو ۲۲
بني‌اسرائیل دِ هم چري دَ جماعت خیمي نه نه نزدي کیږي هسي نه چه

٢٣ دَ مرګ دَپارَ ګناه بار کړِي ٢٣ بلکه لاوِيان دِ دَ جماعت دَخيمي خدمت
کوِي او دوي دِ دَ هغو ګناه باروِي دا ستاسو په پيړو کښ هميشه
٢٤ حکم دي او دَ بنِي‌اسرائيلو په منځ کښ دِ دوي ميراث نه اخلِي ٢٤ دَ
بنِي‌اسرائيلو لسمي حِصّي هغه چه دوي يې دَ خداوند دَپارَ دَ پورته کولو قربانِي
کوِي هغه مِ لاوِيانو له ميراث ورکړلي نو ځکه مِ دوي ته وويل چه
دَ بنِي‌اسرائيلو په منځ کښ دِ دوي ميراث نه اخلِي
٢٥ ٢٦ ٢٥ بيا خداوند دَ موسىٰ سره خبري وکړي و يې ويل چه ٢٦ لاوِيانو
سره خبري وکړه او ورته ووايه چه هر کله چه تاسو له بنِي‌اسرائيلو نه
لسمه حِصّه واخلِئ هغه چه ما تاسو له دَ هغو له طرفَ ميراث درکړي
ده لسمه حِصّه له هغي لسمي حصي، نه تاسو دَ خداوند دَ پورته کولو
٢٧ قربانِي پورته کوِئ ٢٧ نو دا به ستاسو دَپارَ ستاسو دَ پورته کولو قربانِي
٢٨ شمارلِي شِي لکه دَ غنمو درمند او دَ کانړِئ دَخُم ډکوالي ٢٨ نو دا رنګ
تاسو هم له هغه ټولو لسمو حِصّو چه تاسو يې له بنِي‌اسرائيلو نه اخلِئ
دَ خداوند دَ پورته کولو قربانِئ به پورته کوِئ هارون کوهين له به له هغي
٢٩ نه دَ خداوند دَ پورته کولو قربانِي ورکوِئ ٢٩ تاسو له خپلو ټولو قربانو نه
ټولِي دَ پورته کولو قربانِئ چه دَ خداوند دَپارَ پورته کوِئ غوره دَ هغو
٣٠ هغه مُقَدّسه له هغو دِ وِي ٣٠ او ورته ووايه چه هر کله چه غوره دَ
هغو له هغو نه پورته کوِئ نو دَ لاوِيانو دَپارَ دِ دَ درمند دَ حاصل او
٣١ دَ کانړِئ دَخُم دَ حاصل په شان شمارلِي شِي ٣١ او تاسو او ستاسو
خيلخانه يې په هر ځاي کښ خورِئ ځکه چه دا ستاسو مزدورِي دَه په بدل
٣٢ دَ جماعت دَ خيمي دَ خدمت په تاسو کښ ٣٢ نو که تاسو غوره دَ هغو له
هغو نه پورته کړله نو دَ هغي په سبب به تاسو ګناه پورته نه کړِئ او دَ بنِي‌اسرائيلو
هغه مُقَدّس څيزونه مه پليتوِئ چه تاسو مړه نه شِئ ÷

## نولسم باب

١ ٢ ١ او خداوند دَ موسىٰ او دَ هارون سره خبري وکړي و يې ويل چه ٢ دا هغه

دَ شَريعت حکم دَي چه خداوند په هغه سره حکم کړي دي او وئي ويل
چه بني‌اسرائيلو سره خبري وکړه چه يوه سُره سخونډره روغه بي‌عيبه چه څخ
رِ نه وِي اينبودلي شوي تاله دِ راولي ٣ نو اِليعازار کوهين ته ئي تاسو ٣
ورکړي نو هغه دِ ئي له ډيري نه بهر بوزي او هغه دِ ذ هغه دَ وړاندِ
ځوک ذبح کړي ٤ او اِليعازار کوهين دِ دَ هغي له وينو نه په خپله ګوته ٤
واخلي او دَ هغي له وينو نه دِ دَ جماعت دَخيمي مخ طرف ته اووه ځل چنړکاو
کړي ٥ اودَده دَ سترګو دَ وړاندِ دِ هغه سخونډره ځوک وسيزي او دَ هغي څرمن ٥
او دَ هغي غوښي او دَ هغي ويني دِ دَ غوشايانو سره وسيزي ٦ او کوهين دِ دَ ٦
نښتر لرګي او زوفا او قرمز واخلي او دَ هغي سوزيدونکي سخوندري په
مينځ کښ دِ ئي واچوي ٧ بيا دِ کوهين خپلي جامي وويښي او خپل ځان ٧
دِ په اوبو ولمبوي او پس له هغه دِ ډيري ته ننوزي او تر نمابنام به پليت
وِي ٨ او هغه چه ئي وسيزي خپلي جامي دِ په اوبو وويښي او خپل ٨
ځان دِ په اوبو ولمبوي او تر نمابنام به پليت وِي ٩ او پاک سړي دِ ٩
دَ هغي سخوندري ايري ټولي کړي او بهر له ډيري نه دِ ئي په يو پاک
ځاي کښ کيږدي نو دَ بني‌اسرائيلو دَ جماعت دَپارَ به دا ساتلي شي
په يادګارئِ کښ دَ پليتئِ لري کولو اوبو دا دَ خطا قرباني دَه ١٠ او هغه ١٠
سړي چه دَ هغي سخوندري ايري جمع کوي هغه دِ خپلي جامي وويښي او
تر نمابنام به پليت وِي نو دَ بني‌اسرائيلو دَپارَ او دَ هغه پردي سړي دَپارَ
چه دَدوي په مينځ کښ اوسيدونکي وِي هميشه حکم به وِي
١١ هرځوک چه دَ چا مړي سړي جُسته مسته کړي نو اووه ورځي به ١١
پليت وِي ١٢ هغه دِ خپل ځان په دغو سره په دريمه ورځ پاک کړي نو ١٢
په اوومه ورځ به پاک وِي او که په دريمه ورځ ئي ځان پاک نه کړ
نو په اوومه ورځ به پاک نه وِي ١٣ هرځوک چه دَ چا مړ سړي جُسته ١٣
مسته کوي چه هغه مړ وِي او ځان ئي پاک نه کړ نو دَ خداوند مسکن
به پليت کړي نو دغه شخص دِ له بني‌اسرائيلو نه جدا کړلي شي

څخه چه دَ پليتئِ لري كولو اوبه په دهٔ باندِ نه دِي چنړكاؤ كړي شوِي
نو دغه ناپاک دي دَده پليتي به هميشه په ده كښ وِي
۱۴ هم دا شريعت دي كه چرى سړي په خيمه كښ مړ شه
نو هر څوک چه هغه خيمي ته ننوت او هر څوک چه په هغه خيمه كښ
وه هغه به اووه ورځي ناپاک وِي ۱۵ او هر سرتوړ لوښي چه په هغه ۱۵
باندِ سرپوښ نه وِي نو هغه پليت دَي ۱۶ او هر څوک چه په صحرا كښ ۱۶
به تُوره وژلى شوي يا مړي يا دَ سړِي هډوكي يا قبر مښه كړِي نو اووه
ورځي به ناپاک وِي ۱۷ نو دوي دِ دَ هغه ناپاک دَپاره دَخطا دَ قربانئِ ۱۷
سيزلي شوي اِيره واخلي او په هغي باندِ دِ په لوښي كښ جارِي
اوبه واچوِي ۱۸ او يو پاک سړي دِ زوفا واخلي او هغه دِ په هغه ۱۸
اوبو كښ غوټه كړي او په هغه خيمه باندِ او په هغه ټولو لوښو
باندِ او په هغو سړو باندِ چه هلته وُو او په هغه سړي باندِ
چه هغه هډوكي يا وژلي شوي يا مړي يا قبر ئي مَښه كړِي دَي
چنړكاؤ دِ كړِي ۱۹ هغه پاک دِ ئي په هغه ناپاک باندِ په دريمه ورځ ۱۹
او په اوومه ورځ چنړكاؤ كړي او په اوومه ورځ دِ ځان پاک كړِي
او جامي دِ وِوِينځي او په اوبو دِ ځان ولنبوِي نو نمابنام له به پاک وِي
۲۰ او هغه سړي چه پليت وِي او بيا ځان پاک نه كړِي نو دغه شخص ۲۰
به دَ جماعت له مينځه هلاک كړي شي څخه چه ده دَ خداوند مُقدِس
پليت كړي دَي هغه دَ پليتئِ دَ لري كولو اوبه په ده چنړكاؤ نه كړلي
شوي نو دي ناپاک دَي ۲۱ نو دا به دوي له هميشه حكم وِي او ۲۱
هغه سړي چه دَ پليتئِ دَ لري كولو اوبه ئي چنړكاؤ كړي دِي هغه
دِ خپلي جامي وِوِينځي او هغه سړي چه دَ پليتئِ دَ لري كولو اوبه ئي
مَښه كړي دِي هغه به تر نمابنامَ ناپاک وِي ۲۲ او هر څيز چه هغه ۲۲
پليت مَښه كړي هغه به پليت شي او هغه شخص چه هغه مَښه
كړي هغه به تر نمابنامَ ناپاک وِي ÷

# شلم باب

او دَ بني‌اسرائيلو ټول جماعت په وړومبي مياشتي کښ دَ صِين بيابان ١
ته راغلل او قومونه په قاديش کښ پاتي شول او مريمه هلته مړه
شوله او هلته خښه کړلي شوله ٢ او دَ جماعت دَپاره اوبه نه وي نو په ٢
موسیٰ او په هارون باندِ جمع شول ٣ او قام دَ موسیٰ سره جګړه وکړله ٣
او خبري ئي وکړلي و ئي ويل چه اَرمان دي چه مونږ دَ خپلو وروڼو
دَ مړکيدلو په شان دَ خداوند دَ وړاندِ مړه شوي وي ٤ او څه دَپارَ ٤
تاسو دواړو دَ خداوند جماعت دي بيابان ته راوست دَدي دَپارَ چه
په دي کښ مونږ او څمونږ څاروي مړه شي څه؟ ٥ او څه دَپارَ تاسو ٥
دواړو مونږ له مصر نه راوخيژولُو دَدي دَپارَ چه مونږ دي ناکارَ
ځاي ته راولئِ دا ځاي دَ کرلو او دَ اينځرو او دَ انګورو او دَ انارو
نه دي او نه په دي کښ دَ څښلو دَپارَ اوبه شته

٦ نو موسیٰ او هارون دَ جماعت له مخي نه دَ جماعت دَ خيمي ٦
دروازي ته راغلل او دواړه پړمخي پريوتل نو دواړو ته دَ خداوند لويي ښکاره
شوله ٧ او خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ٨ همسا ٧ ٨
واخله او جماعت جمع کړه ته او ستا ورور هارون او دَ دوي دَ وړاندِ
دغي ګټي سره خبري وکړئِ او هغه به خپلي اوبه درکړي نو دَ دوي
دَپارَ به له دغي ګټي نه اوبه وباسي او په دغه جماعت او دَ دوي
په څارو به ئي وڅښوي ٩ نو موسیٰ دَ خداوند له وړاندِ نه همسا ٩
واخستله لکه چه څنګه ئي ده ته حکم کړي وه ١٠ نو موسیٰ او هارون ١٠
هغوي ټول دَ هغي ګټي دَ وړاندِ جمع کړل او ور ته ئي وويل چه اي
سرکښانو واورئِ له دي ګټي نه تاسو له اوبه وباسُو څه؟ ١١ نو موسیٰ ١١
خپل لاس پورته کړ او هغه ګټه ئي په خپلي همسا باندِ دوه ځله
ووهله نو ډيري اوبه ووتلي نو جماعت او دَ هغو څارو وڅښلي ١٢ نو ١٢

خداوند موسیٰ او هارون ته ووېل چه دَ دي دَپارَ چه تاسو په ما باندِ
باور کړي نه دي چه دَ بني اسرائيلو دَ وړاندِ موخما تقديس کړي وي
نو دَدي دَپارَ به تاسو دغه جماعت هغي زمکي ته چه هغه ما دوي له
۱۳ ورکړي دَه ور نه نه باسئ ۱۳ دا دَ مَريباه اوبه دِي څکه چه بني اسرائيلو
دَ خداوند سره جګړه کړي دَه نو خپل ځان ئي په دوي کښ مُقَدّس کړ
۱۴ ۱۴ او موسیٰ له قادِيش نه دَ اَدُوم بادشاه ته قاصدان ورواستول
چه اسرائيل ورور ستا داسي وايي چه هغه ټول تکليف چه مونږ ته
۱۵ رسيدلي دي ته پوهيږي ۱۵ څمونږ پلرونه مصر ته کوز شول او په مصر
کښ مونږ ډيري ورځي و اوسيدلو او مصريانو څمونږ سره او څمونږ دَ
۱۶ پلرونو سره بد وکړل ۱۶ نو مونږ خداوند ته چغي وکړلي او څمونږ آواز ئي
واورېد او يَوه ملائکه ئي راواستوله او مونږ ئي له مصر نه راوويستلو
اوګوره مونږ په قادِيش کښ چه يَو ښهر ستا په سرحد کښ دي-
۱۷ ۱۷ مونږ پرېږده چه ستا په زمکه کښ تير شُو په پټو کښ او په انګورو
کښ به نه تيريږُو او دَ کوهي اوبه به نه څښُو په بادشاهي لاري به ځُو
په ښي په کيڼه به نه کږيږُو ترڅو پوري چه ستا له سرحدَ تير شُو-
۱۸ ۱۸ نو اَدُوم ورته ووېل چه په ما باندِ مه تيريږه هسي نه وِي چه دَ
۱۹ مخامخ کيدلو دَپارَ دَ تُوري سره در ووځم ۱۹ نو بنيِ اسرائيلو ورته ووېل
چه مونږ به په لاري باندِ تيريږُو او که چرِ مونږ او څمونږ څاروو ستا
له اوبو نه وڅښلي نو قيمت به ئي درکړم نور څه نشته خو فقط پياده
۲۰ تيريږم ۲۰ نو وئي وېل چه مه تيريږه او اَدُوم دَدوي دَ مخامخ کيدلو دَپارَ
۲۱ دَ ډيرو قومونو سره او دَ زوراور لاس سره ور ووت ۲۱ او اَدُوم دَ اسرائيل
له تيريدلو نه په خپل سرحد کښ منع وکړله نو اسرائيل له هغه نه
وګرزيده
۲۲ ۲۲ نو دَ بنيِ اسرائيلو ټول جماعت له قادِيش نه وکوچيدل او هُور غره
۲۳ ته راغلل ۲۳ او خداوند دَ موسیٰ او دَ هارون سره دَ هُور غره کښ دَ اَدُوم

دَ زمکي په سرحد باندِ خبري وکړي و ئي ويل چه ۲۴ هٰارُون دِ دَ خپل ۲۴
قوم سره يَو خاي شِي ځکه چه هغه زمکه چه ما بنيِ‌اسرائيلو ته ورکړي
دَه هغِي ته به دي نه ورننوزِي ځکه چه تاسو دَ مريباه اوبو څخه څما
له ويلو نافرماني کړي دَه ۲۵ هٰارون او دَ هغه ځوي اَليعازار واخله او ۲۵
دواړه هُور غرِه ته وخيژوه ۲۶ او له هٰارون نه دَ هغه جامي وباسه ۲۶
او دَ هغه ځوي اَليعازار ته ئي واغوندوه نو هٰارون به دَ قوم سره
يَو خاي شِي او هلته به مړ شِي ۲۷ نو موسىٰ هغه شان وکړل لکه ۲۷
چه خداوند ورته حکم کړي وه او دوي دَ ټول جماعت دَ سترګو دَ
وړاندِ هُور غرِه ته وختل ۲۸ نو موسىٰ له هٰارُون نه دَ هغه جامي ۲۸
وويستلي او دَ هغه ځوی اَليعازار ته ئي هغه واغوستولي نو هٰارون
هلته دَ غرِه په سر باندِ مړ شه بيا موسىٰ او اَليعازار له غرِه نه راکوز
شول ۲۹ هر کله چه ټول جماعت وليدل چه هٰارون مړ شه نو ديرش ۲۹
ورځي دَ اسرائيل ټول خاندان په هٰارون وژړل ؛

## يوويشتم باب

۱ او هر کله چه دَ عَرَاد هغه کِنعانِي بادشاه چه دَ سُهيل په طرف ۱
اوسيدونکي دي دا ئي واوريدل چه اسرائيل دَ جاسُوسان په لار راغلل
نو دَ اسرائيل سره ئي جنګ وکړ او څه ئي تړِ ونيول ۲ نو اسرائيل ۲
خداوند له نذر ومانه او و ئي ويل چه که دغه قوم دِ څما په لاس کښ
راکړِ نو زه به ئي ښهرونه حرم کړم ۳ نو خداوند دَ اسرائيل خبره واوريدله ۳
او هغه کِنعانيان ئي ورکړل نو هغو هغوي او دَ هغو ښهرونه حرم
کړل نو دَ دغه خاي نوم حُرماه وبللي شه
۴ او دوي له هُور غره نه دَ سُوف درياب په لاري کوچ وکړ ۴
دَپارَ دَ دي چه دَ اَدوم له زمکي چاپير شِي نو دَ قام زړونه په هغي
لاري کښ تنګ شول ۵ او قام په اَلله پوري او په موسىٰ پوري خبري ۵
وکړي چه دَ څه دَپارَ تاسو دواړو موږ دَ مصر له زمکي نه را وخيژولو

دَ دي دَپارَ چه پهٔ بيابان کښې مونږ مړهٔ شو څه ؟ ځکه چه نه ډوډئ
شته او نه اوبه شته او څمونږ زړونه له دي سپک طعام نه کرکه
۶ کوي ۶ نو خداوند پهٔ هغه قام باندې سوزونکي ماران ور وليږل نو قام
۷ ئي وچيچل نو له بني‌اسرائيلو نه ډير قام مړ شه ۷ نو هغه قام موسیٰ
له راغلل او وئي ويل چه مونږ خطا کړي ده چه پهٔ خداوند پوري او پهٔ
تا پوري مو خبري وکړلي نو خداوند ته سوال وکړه چه دا ماران له مونږ
۸ نه لري کړي نو موسیٰ دَ قام دَپارَ دُعا وکړله ۸ نو خداوند موسیٰ ته
وويل چه دَ ځان دَپارَ يو سوزونکيَ مار جوړ کړه او پهٔ خپله نيزه
پوري ئي ځوړند کړه نو هر څوک چه چيچلي شوي وي او هغه ته وګوري
۹ نو ژوندي به شي ۹ نو موسیٰ له مسو نه يو مار جوړ کړ او پهٔ نيزه
پوري ئي ځوړند کړ نو داسي وشوه چه چرته به مار سړي وچيچه
او هغه به دَغه دَ مسو مار ته وکتل نو ژوندي به شه
۱۰ ۱۱ ۱۰ بيا بني‌اسرائيلو کوچ وکړ او پهٔ اوبوت کښې ډيره شول ۱۱ او له
اوبوت نه ئي کوچ وکړ او پهٔ عيّي عباريم کښې پهٔ هغه بيابان کښې ډيره
۱۲ شول چه موآب ته مخامخ نمرخاته طرف ته دي ۱۲ او له هغه ځاي ئي
۱۳ کوچ وکړ او دَ زارِد پهٔ دره کښې ډيره شول ۱۳ له هغه ځايَ ئي کوچ وکړ
او پوري غاړه دَ ارنون پهٔ هغه بيابان کښې چه دَ اموريانو له سرحد
نه بهر وه ډيره شول ځکه چه ارنون دَ موآب سرحد دي دَ موآب او
۱۴ دَ اموريانو پهٔ مينځ کښې ۱۴ نو له دي سببَ دَ خداوند دَ جنګنامي پهٔ کتاب
۱۵ کښې ويلي کيږي چه واهيب پهٔ طوفان کښې او دَ ارنون خوړونه ۱۵ او دَ
خوړونو دَ بهيدلو ځاي چه دَ عار مسکن نه ځي او دَ موآب سرحد ته
رسيږي
۱۶ ۱۶ او له هغه ځايَ تر بيرَ پوري لاړل او دا هغه بيرَ دي چه خداوند
۱۷ موسیٰ ته ويلي وُو چه قام جمع کړه چه زهٔ وله اوبه ورکړم ۱۷ نو اسرائيل
۱۸ دا سرود وکړ اي کوهيَ پهٔ جوش را وخيږه وله جواب ورکړه + ۱۸ کوهي دَ ي

کنودلي سردارانو ٭ کنودلي دَ قام شریفانو ٭ په عصا او په خپلو همساګو
او له بیابان نه مَتّانَاه ته (لاړل) ۱۹ او له مَتّانَاه نه نَحَلِیئیل ته او ۱۹
له نَحَلِیئیل نه بَامُوث ته ۲۰ او له بَامُوث نه هغه درې ته چه دَ موآب ۲۰
په صحراکښې دَه دَ پِسګاه په سر باندِ چه بیابان ته ئې مخ دي
۲۱ او اسرائیل دَ اُموریانو سیحُون بادشاه ته قاصدان واستول وئې ۲۱
ویل چه ۲۲ ما پریږده چه ستا په زمکه کښې تیر شم نه به پټيې ته کږېږو ۲۲
او نه دَ انګورو باغ ته او نه به دَ کوهِي اوبه څښو په بادشاهِي لاري به
ځُو تر ځو چه ستا له سرحدَ تیر شُو ۲۳ نو سَیحُون په خپل سرحد کښې ۲۳
اسرائیل له تیریدل ور نه کړل بلکه سیحُون خپل قوم ټول جمع کړ
او دَ اسرائیل دَ مخامخ کیدلو دَپارَ بیابان ته راووت نو یاُتصا ته
ورسیده او دَ اسرائیل سره ئې جنګ وکړ ۲۴ نو اسرائیل هغه په ۲۴
تیره توره وواهه او دَ هغه زمکه ئې له اَرنُونَ تر یبُوقَ تر بنِيعَمونَ
پورې واخستله ځکه چه دَ بنيعَمُونو سرحد مضبوط وه ۲۵ نو اسرائیل ۲۵
هغه ټول ښهرونه واخستل او اسرائیل دَ اُموریانو په ټولو ښهرونو
کښې په حِشبون او په ټولو کلو کښې دَ هغو واوسیدل ۲۶ ځکه چه ۲۶
حِشبُون دَ اُموریانو دَ سیحُون بادشاه ښهر وه او دَ موآب دَ ورنِي بادشاه
سره ئې جنګ کړي وه او دَ هغه زمکه ئې تر اَرنُونَ پورې دَ هغه له لاسَ
اخستلي وه ۲۷ له دې سببَ متل ویونکي داسې وايي چه حِشبون ته راشئ ۲۷
چه دَ سَیحُون ښهر جوړ او ودان شي ۲۸ ځکه چه اور له حِشبُون نه ۲۸
ور ووت او لنبه دَ سَیحُون له ښهرَ چه دَ موآب عَار او دَ اَرنُون
دَ لوړو ځایُونو خاوندا ن ئې وخوړل ۲۹ اي موآبَ په تا افسوس ۲۹
اي دَ کِموش قومَ هلاک شوئِ خپل تښتیدونکي ځامن اوخپلي لُونړه
ئې دَ اموریانو دَ سَیحون بادشاه په بند کښې ورکړل ۳۰ لیکن مونږ هغوي ۳۰
وویشتل او حِشبون تر دِیبُونَ پورې هلاک شه او له نُفَحَ نه هغه چه
تر میدبا پورې دِي هغه مو وران کړل

۳۱ ۳۲ ۳۱ او اسرائیل دَ اَموُریانو په زمکه کښې و اوسید ۳۲ او موسیٰ
دَ یَعزِیر دَ جاسوُسئ دَپارَ (سرِي) واستول نو کلي ئې دَ هغوي واخستل
۳۳ او اَموریان چه هلته وُو هغه ئې وشړل ۳۳ بیا وګرزیدل او دَ باشان
لاري ته وختل نو دَ باشان عُوج بادشاه پخپله او ټول قوم دَ هغه
۳۴ دَ دوي دَ مخامخ کیدلو دَپارَ په اِذرَعِي کښې جنګ له را ووتل ۳۴ نو خداوند
موسیٰ ته وویل چه ته له ده نه مه ویریږه ځکه چه ما دي دَده دَ ټول
قوم او دَده دَ ټولي زمکي سره ستا په لاس کښې درکړي دِي نو ته
ورسره هسي وکړه لکه چه دَ اَموریانو سِیحُون بادشاه سره دِ کړي وُو هغه
۳۵ چه په حِشبون کښې اوسیده ۳۵ نو هغه او دَ هغه ځامن او دَ هغه ټول
قوم ئې وواهه تر هسي حدَ پوري چه هیڅوک دَ هغه دَپارَ باقي نه شه
او دَ هغو زمکه ئې واخستله +

## دوه ویشتم باب

۱ ۱ او بنيِ اسرائیل وکوچیدل او دَ موآب په میدانونو کښې په دي غاړه
۲ دَ اَردَن دَ یَریحُو په برابر ډیره شول ۲ او چه بالاق دَ صِپّور ځوي هغه
۳ ټول چه بنيِ اسرائیلو دَ اَموریانو سره کړي وُو و ئې لیدل ۳ نو موآب
دَدغه قوم له مخي نه ډیر وویرید ځکه چه هغوي ډیر وُو او موآب دَ
۴ بنيِ اسرائیلو له مخي تنګ شول ۴ نو موآب دَ مدیان مشرانو ته وویل
چه اوس به دغه جماعت هر څه چه ځموږ نه ګیرچاپیر دِي وخوري
لکه چه غوایه بِشین فصل خوري او په دغه زمانه کښې بالاق دَ صِپّور
۵ ځوي دَ موآب بادشاه وه ۵ نو قاصدان ئې بِتّور ته هغه چه دَ سیند
په غاړه دَ خپل قوم په زمکه کښې وه په بَلعام دَ بِعور ځوي پسي واستول
دَپارَ دَدي چه را و ئې بولِي و ئې ویل چه ګوره یو قوم له مصرَ راوتلي
دِي ګوره دَ زمکي مخ ئې پټ کړي دَي او ځموږ په مخامخ ډیره دَي -
۶ ۶ نو اوس زاري کوم ته راشه او ځما دَپارَ دي قام ته خیري وکړه ځکه
چه دَي له ما نه زوراور دَي بنائِي چه موږ ئې وشړلي شو او دغه قوم

مات کړو نو له دي زمکي به يې وشړم ځکه چه زه پوهيږم چه چا ته ته
دَ برکت دُعا کوي نو هغه مبارک دَي او چه چا ته ته خيري کوي نو هغه
۷ ملعون دَي ۷ نو دَ موآب مشران او دَ مديان مشران لاړل او دَ فال
اچولو مزدوري يې په لاس کښ وَه او بَلعام له ورغلل او دَ بالاق خبري
۸ يې ورته ووېلي ۸ نو و يې ويل چه دلته شپه کړيئ زه به تاسو له خبر
راوړم لکه چه څنګه يَهوَه څما سره خبري وکړي نو دَ موآب سردار بَلعام
څخه پاتي شول
۹ ۹ نو اَلله بَلعام له راغي او و يې ويل چه دغه سړي څوک دِي هغه
۱۰ چه تا څخه دِي ۱۰ نو بَلعام اَلله ته ووېل چه بالاق دَ صِپور ځوي دَ موآب
۱۱ بادشاه ما له را لېږلِي دِي وايِي چه ۱۱ ګوره قام چه له مصرَ راوتلي
دَي دَ زمکي مخ يې پټ کړ راشه اوس څما دپارَ هغه ته خيري وکړه
۱۲ بنايي چه زه جنګ وکړي شم او و يې شړم ۱۲ نو اَلله بَلعام ته ووېل
چه دوي سره مه ځه او هغه قام ته خيري مه کوه ځکه چه هغه
۱۳ مبارک دي ۱۳ نو بَلعام صباح پاسيد او دَ بالاق سردانو ته يې ووېل
چه خپلي زمکي ته لاړ شيئ ځکه چه خداوند ما ته ستاسو سره له تللو نه
۱۴ منع وکړله ۱۴ نو دَ موآب سرداران پاڅيدل او بالاق له ورغلل او و يې
۱۵ ويل چه بَلعام څمونږ سره له راتللو نه منع وکړله ۱۵ نو بيا بالاق له
۱۶ دغه سرو نه زيات او عزّت دار سرداران ور واستول ۱۶ نو بَلعام له ورغلل
او ورته يې ووېل چه بالاق دَ صِپور ځوي داسي ويلِي دِي چه زه زارِي کوم
۱۷ ما له لا راتللو نه منعَ مه کوه ۱۷ ځکه چه زه به ستا لوي عزّت وکړم او
هر څه چه ته راته وايي هغه به زه کوم نو اوس زارِي کوم چه راشه او
۱۸ څما دپارَ دي قوم ته خيري وکړه ۱۸ نو بَلعام ځواب ورکړ او دَ بالاق مريونو
ته يې ووېل چه که چرې بالاق خپل کور له سپينو او له سرو ډک لا له
راکوِي هم څما طاقت نشته چه دَ خپل يَهوَه اَلله له مخ نه تيريدلي شم
۱۹ چه څه لږ يا ډير وکړم ۱۹ نو زه زارِي کوم اوس تاسو هم دا نن شپه دلته

پاتي شئ چه زه پوه شم چه يَهُوَه بيا څنګه څه زياته خبره ما ته کوي
۲۰ ۲۰ نو اَلله بَلعام له دَ شپې راغي او ورته ئې وويل چه که دغه سړي
ستا دَ بللو دَپاره راشي نو پاسه دوي سره لاړ شه خو ته فقط هم هغه
۲۱ خبره چه زه درته وايم په هغه خبري کوه ۲۱ نو صباح له بَلعام پاڅيده
اوخپله خره ئې کته کړله او دَ موآب دَ سردارانو سره لاړ شه
۲۲ ۲۲ نو دَ اَلله غضب په جوش کښ څکه چه دي لاړ او دَ خداوند
ملائکه په هغي لاره کښ ودريدله دَپاره دَدي چه دَده سره مقابله
شي او دَي په خپله خره باندِ سور وه او دوه نوکران خپل ورسره
۲۳ وُو ۲۳ نو هغې خرې هغه دَ خداوند ملائکه وليدله چه په لاري ولاړه
وه اوکښلي تُوره ئې په لاس کښ وَه نو هغه خره له لاري نه کږه شوله
او په پټي کښ کَده شوله نو بَلعام هغه خره ووهله دَپاره دَدي چه لاري
۲۴ ته ئې راولي ۲۴ بيا دَ خداوند ملائکه دَ انګورو دَ باغونو په تنګه کوڅه
۲۵ کښ چه يوخوا بل خوا ئې ديوال وه ودريدله ۲۵ نو هر کله چه هغې خرې
هغه دَ خداوند ملائکه وليدله نو دَ هغه ديوال سره وجنګيدله او دَ بَلعام
۲۶ پښه ئې دَ ديوال سره وجنګوله نو بيا ئې ووهله ۲۶ بيا دَ خداوند ملائکه
وراندِ شوله او په هسي تنګ ځاي کښ ودريدله چه هلته لار په ښي
۲۷ په کيڼه دَ کږيدو دَپاره نه وَه ۲۷ نو هر کله چه هغې خرې هغه دَ
خداوند ملائکه وليدله نو دَ بَلعام دَ لاندِ څملاستله نو دَ بَلعام غضب
۲۸ په جوش کښ شه او هغه خره ئې په همسا ووهله ۲۸ نو خداوند دَ
هغې خرې خوله پرانستله او بَلعام ته ئې وويل چه ما تا سره څه کړي دِي
۲۹ چه تا اوس دري ځلَ ووهلم ۲۹ نو بَلعام هغې خرې ته وويل چه تا زه
سپک کړلم که چري څما په لاس کښ تُوره وي نو زه به اوس خواه مخواه
۳۰ تا ووژنم ۳۰ نو هغې خرې بَلعام ته وويل چه زه ستا هغه خره نه يم
څه؟ هغه چه ته په ما باندِ له هغه وقت چه زه ستا شوی يم ترننه
ورځي پوري سوريږي نو آيا داسي عادت مِ کړي وه څه؟ چه چري تا سره

داسي كار وكړم نو ده وويل چه نه
۳۱ بيا خداوند دَ بَلعَام سترګي پرانتلي نو دَ خداوند ملائكه ئي وليدله ۳۱
چه په لاري كښ ولاړه وَه او وكښلي توره ئي په لاس كښ وَه نو پرمخي
په سجده پريوت ۳۲ نو دَ خداوند ملائكي ور ته وويل چه دَ څه دَپارَ دِ ۳۲
اوس داخپله خره دري ځلَ ووهله ګوره ستا دَ مقابلي دَپارَ راوتلي يم
ځكه چه دغه لار څما دَ وړاندِ كږه دَه ۳۳ نو زه دغي خري وليدم او اوس ۳۳
مِ دري ځلَ له مخي نه په ډډه شوله اوكه له مخي مِ نه وي په ډډه
شوي نو خواه مخواه اوس به مِ وژلي وي او دا به ژوندئ پاتي وَه -
۳۴ نو بَلعَام دَ خداوند ملائكي ته وويل چه خطا شوم زه نه پوهيدم ۳۴
چه ته څما دَ وړاندِ په لاري كښ ولاړه يي اوكه اوس ستا په
ستركو كښ ښكاره شوي وِي نو زه بيرته ګرزم ۳۵ نو دَ خداوند ملائكي ۳۵
بَلعَام ته وويل چه دغه سړو سره لاړ شه خو ته فقط هم هغه
خبرِه ګوه چه زه تا سرِه په هغي خبري ګوم نو بَلعَام دَ بالاق دَ سردارانو
سرِه روان شه
۳۶ او هر كله چه بالاق واوريدل چه بَلعَام راغي نو استقبال ته ۳۶
ئي دَ مواب هغه ښهر ته ورووت چه دَ اَرنون په آخر سرحد كښ
دي ۳۷ نو بالاق بَلعَام ته وويل چه تا ته مِ دَ راغوښتلو دَپارَ نه وَه ۳۷
درليږلي څه؟ ته ولي ماله نه راتلي آيا رښتيا زه تا له په عزت دركولو طاقت
نه لرم څه؟ ۳۸ نو بَلعَام بالاق ته وويل چه ګوره تا له راغلم آيا ۳۸
زه طاقت لرمِ چه څه ووايم څه؟ هغه خبره چه الله
څما په خوله كښ ږدي هغه به ووايم ۳۹ نو بَلعَام او بالاق سره ۳۹
روان شول قِريَتِ حُصُوت ته راغلل ۴۰ نو بالاق غوايان او ګډان حلال ۴۰
كړل او بَلعَام ته او هغه سردارانو ته ئي وليږل چه هغه ورسره وُو
۴۱ او صباح له داسي وشوه چه بالاق بَلعَام واخست او دَ بعل ۴۱
لوړو ځايونو ته ئي وخيژاوه نو له هغه ځايَ ئي دَ هغه قوم ورستي

سر ولید ÷

# درویشتم باب

١ ١ نو بَلعام بالاق ته وویل چه دلته ما له اووه مذبحونه جوړ کړه
٢ او دلته ما له اووه غوایان او اووه ګډان طیار کړه ٢ نو چه څنګه بَلعام
ویلي وُو بالاق هغه شان وکړل او بالاق او بَلعام یو غوایه او یو ګډ په
٣ هر مذبح باندِ وخېژاوه ٣ نو بَلعام بالاق ته وویل چه خپلي دَ سولو قربانيِ
څنګه ودرېږه او زه ځم بنایِي چه یَهوَهْ ځما سره مخامخ شِي نو هر څه
چه ما ته وښَيِي نو تا به په هغه خبر کړم پس له هغه دېريِ ته لاړ
٤ شه ٤ نو اَللّٰه دَ بَلعام سره مخامخ شه نو ورته يي وویل چه اووه
مذبحونه مِ برابر کړِي دِي او یو غوایه او یو ګډ مِ په هر مذبح خېژولي
٥ دِي ٥ نو خداوند دَ بَلعام په خوله کښ خبره کښېښوده او وِيي ویل چه
بالاق له ور وګرزه او داسي ورته ووایه
٦ ٦ نو هغه ته ور وګرزید او هغه خپلي دَ سولو قربانيِ څنګه پخپله
٧ او ټول دَ موآب سرداران ولاړ وُو ٧ نو خبره يي په خپل متل سره
وکړله او وِيي ویل چه زه بالاق دَ موآب بادشاه له آرام نه دَ
نمرخاته له غرونو نه راوستلي یم چه ته راشه او ځمونږ دَپارَ یعقوب
٨ ته خېرې وکړِه او راشه اسرائیل ته بد ویل وکړِه ٨ نو څنګه به زه
خېرې وکړم هغه چا ته چه اَللّٰه پرِ لعنت نه وایِي او څنګه به زه بد
٩ ویل وکړم هغه چا ته چه یَهوَهْ ورته بد ویل نه کوِي ٩ زه يي دَ
ګټو له سر نه وینم او له دېرو نه راته ښکارېږي ګوره دا قوم دَي چه
١٠ یَواځي اوسِي دَ غیر قومونو په مېنځ کښ نه شِي حسابولي ١٠ دَ یعقوب
خاوره او څلورمه حِصّه دَ اسرائیل به څوک وشمارلي شي ځما ځان
دِ دَ نېکانو دَ مرګ په شان مړ شِي
١١ ١١ نو بالاق بَلعام ته وویل چه دا دِ ځما سره څه وکړل ما ته
راوستلي چه ځما دُښمنانو ته بد ویل وکړي او ګوره تا هغوي ته خواه

مخواه دَ برکت دُعا وکړله ۱۲ نو ځواب ئي ورکړ او وئي ويل چه هغه ۱۲
څه چه يَهُوَهٔ ځما په خوله کښ ايښي دِي آيا زه کوشش نه کوم څه؟
چه په هغه سره خبري وکړم ۱۳ نو بالاق ورته وويل چه بل ځاي ۱۳
ته ځما سره راځه چه له هغه نه ئي ووِيني نو ځما دَپارَ ورته
له دي ځايَ خيري وکړه ۱۴ نو هغه ئي دَ صُوفِيم پټي ته دَ پِسګاه ۱۴
دَ سرَ پوري بوت او اووه مذبحونه ئي جوړ کړل او يَو غوايه او يَو
ګډ ئي په هر مذبح باندِ وخيژوه ۱۵ نو بالاق ته ئي وويل چه دلته ۱۵
خپلي دَ سولو قربانئِ څخه ودريږه او زه هلته ملاقات کوم
۱۶ نو خداوند دَ بَلعام سره ملاقات وکړ او خبره ئي دَ هغه ۱۶
په خوله کښ کښيښوله او وئي ويل چه بالاق ته ور وګرزه او داسي
خبري وکړه ۱۷ نو هغه له ورغي او څه ګورِي چه هغه خپلي دَ سولو ۱۷
قربانئِ څخه ولاړ دي او دَ مواب سرداران ورسره دِي نو بالاق ورته
وويل چه يَهُوَهٔ څه خبري وکړلي ۱۸ نو خبره ئي په خپل متل سره ۱۸
وکړله او وئي ويل چه پاسه اي بالاقَ او واوره ما ته غوږ کيږده
اي دَ صِپُور ځويَ ۱۹ اَلله سړي نه دي چه به دروغ وايِي او نه دَ ۱۹
سړِي ځوي دي چه به پښيمانَ کيږِي آيا وايِي به او کوِي به ئي نه څه؟
يا خبره به کوِي او پوره کوِي به ئي نه څه ؟ ۲۰ ګوره ما ته حکم دَ ۲۰
برکت ورکولو شوي دَي نو هغه برکت ورکړ نو زه ئي نه شم ورګرزولي
۲۱ نه ئي په يَعقُوب کښ ګناه ليدلي دَه او نه ئي په اسرائيل کښ ۲۱
فساد ليدلي دي يَهُوَهٔ اَلله دَده ورسره دي او دَ بادشاهئِ آواز په ده
کښ دَي ۲۲ دَي اَلله له مصرَ را وکښلي دَي دَده دَ ګينډِي په شان ۲۲
زور دَي ۲۳ چه نه منتر په يَعقُوب چليږي او نه بد فال په اسرائيل ۲۳
باندِ په دي وقت ويلي کيږِي له يَعقُوبَ او له اسرائيلَ هغه چه
اَلله کړي دِي ۲۴ ګوره قوم دَ زمرئِ په شان به پاسِي او دَ زمرِي ۲۴
په شان به پورته کيږِي اوده به نه ټِيي ترڅو پوري چه ښکار وخوري

او دَ مړو ډېڼي وشمېي
٢٥ ٢٥ نو بالاق بَلعَام ته وويل چه مه ورته خيري کوه او مه ورته
٢٦ دَ برکت دُعا کوه ٢٦ نو بَلعام ځواب ورکړ او بالاق ته ئې وويل چه آيا
تا سره مې خبري نه وي کړي چه؟ چه ويل مې چه هر څه چه يَهوَه
٢٧ ووايي نو زه به هغه کوم ٢٧ نو بالاق بَلعام ته وويل چه راځه چه بل
ځاي ته دې بوزم بنايي چه دَ الله په دواړو سترګو کښ دا ښه ښکاره
٢٨ ښي چه ته له هغه ځاي ځما دَپاره هغه ته خيري وکړي ٢٨ نو بالاق
٢٩ بَلعام دَ بعور سر ته بوت هغه چه بيابان ته مخامخ دَي ٢٩ او بَلعام
بالاق ته وويل چه دلته ځما دَپاره اووه مذبحونه جوړ کړه او اووه غواګان
٣٠ او اووه ګډان راته دلته طيار کړه ٣٠ نو لکه چه بَلعام وويل هغه
شان بالاق وکړل او يو غوايه او يو ګډ ئې په هر مذبح باندې وخيژاوه ÷

# څليرشتم باب

١ ١ چه بَلعام وليدله چه دَ خداوند په سترګو کښ دا ښه ښکارېږي چه
په اسرائيل باندې برکت وکړلي شي نو لکه چه په ورښو وارونو چه به
٢ دَ فالونو دَپارَ ته لاړ نه شه بلکه بيابان ته ئې مخ کړ ٢ او بَلعام
سترګي پورته کړلي او و ئې ليدل چه اسرائيل موافق دَخپلو فرقو
٣ استوګي دي او دَ الله روح په ده باندې نازل شه ٣ نو خبره ئې په
خپل متل سره وکړله او و ئې ويل چه بَلعام دَ بعور ځوي وايي هغه
٤ سړي چه سترګي ئې پرانتلي شوي دي وايي ٤ هغه سړي چه دَ الله ئې
خبري اوريدلي دي وايي چه دَ قادر رؤيا ئې ليدلي دي چه پروت وه او
٥ سترګي ئې پرانتلي وي وايي چه ٥ ستاځه ښائسته خيمي دي اي يَعقوبَ
٦ او مسکنونه ستا اي اسرائيلَ ٦ لکه غوړيدلي دريځ لکه دَ ولي په غاړه
باغونه لکه دَ عُودو وني چه يَهوَه کرلي دي لکه دَ نښترونه دَ اوبو په
٧ غاړه ٧ اوبه به ئې له بورقو نه بهيږي او تخم به ئې په ډيرو اوبو
باندې وي بادشاه به ئې له اُجاج نه لوي وي او بادشاهت به ئې لوئيږي

۸ دي الله له مصرَ را وکښلي دَي دَ کینډِي په شان زورآور دي هغه ۸
قومونه چه دَده دُښمنان دِي هغه به خوري او هډوکي به يې ماتوي
او دَده غشي سوري کوي ۹ غزيدل او څملاستل يې لکه دَ زمري او لکه ۹
دَ زمرئ دِي څوک يې پاڅوي چه دَ برکت دُعا در ته کوي هغه مبارک دي
او چه لعنت درباندِ وايي مَلعُون دي ۱۰ نو دَ بالاق غضب په بَلعام ۱۰
باندِ لنبه شه او خپل لاسونه يې سره پرَق وهل نو بالاق بَلعام ته
وویل چه ته مِ رابللي يې دَپارَ دَدي چه څما دُښمنانو ته خيري وکړي
او ګوره تا هغو ته اوس دري ځلُ دَ برکت دُعا وکړله ۱۱ نو اوس خپل ځاي ۱۱
ته وتښته ما ویل چه زه به ستا عزّت وکړم او ګوره ته يَهوَه له هغه
عزّتَ منعَ کړلي ۱۲ نو بَلعام بالاق ته وویل چه آیا ستا هغو قاصدانو ۱۲
سره چه هغه دِ ما ته رالیږلي وُو خبري مِ نه وي کړي څه؟ چه ویلي
مِ وُو چه ۱۳ که ما له بالاق خپل کور دَ سپینو او دَ سرو زرو ډک ۱۳
راکوي خو څما طاقت نشته چه دَ يَهوَه له ویلو نه تیر شم چه ښه
یا بد له خپلَ ځانَ وکړم هغه چه ما سره يَهوَه څه خبري کوي هم
هغه خبري به کوم ۱۴ او اوس ګوره زه خپل قوم ته ځلونکي يم راځه ۱۴
چه دِ خبر کړم چه دغه قوم به ستا دَ قومِ سره په ورستو ورځو
کښ څه وکړي

۱۵ نو خبره يې په خپل متل سره وکړله او وې ویل چه بَلعام ۱۵
دَ بِعُور ځوي وايي هغه سړي چه سترګي يې پرانتلي شوي دِي وايي -
هغه چه دَ الله خبري يې اوریدلي دِي او دَ الله تعالیٰ په علم پوه شوي ۱۶
دي هغه وايي هغه چه قادر يې په خوب کښ لیدلي دي چه پروت
وه او سترګي يې پرانتلي وي وايي چه ۱۷ دي به وويني خو اوس نه او وبه ۱۷
يې ويني خو نزدي نه له يَعقُوب نه به يوَ ستوري ښکاره شي او يوَه
همسا به له اسرائیل نه پورته شي نو دَ مُوآب کونټونه به مات کړي
او ټول دَ فساد اولاد به هلاک کړي ۱۸ او آدوم به يې میراث شي ۱۸

او سِیعِیر به هم دَ هغه دَ دُښمنانو میراث شِي او اسرائیل به زړه ورتوب
١٩ وکړِي ١٩ او هغه چه له یَعقُوبَ وِي هغه به حکم وکړِي او باقِي دَ ښهر
به ټول هلاک شِي
٢٠ ٢٠ بیا ئي عمالیق ولیدل نو خبره ئي په خپل متل سره وکړله او
و ئي ویل چه عمالیق اوّل دَ غیر قومونو دِي او آخر دَ هغه به هلاک
٢١ شِي ٢١ بیا ئي قِینیانو ته وکتل نو خبره ئي په خپل متل سره وکړله
او و ئي ویل چه مسکن ستا دِ محکم شِي او جاله دِ په کته کښې
٢٢ ایښې دَه ٢٢ لیکن قاین به هلاک شِي تر هغه وقتَ پورې چه آشور تا
٢٣ بند کړِي ٢٣ نو خبره ئي په خپل متل سره وکړله او و ئي ویل چه افسوس
دِي چه څوک به ژوندي وِي په هغه وقت کښې چه اَللّٰه دا کار کوِي -
٢٤ ٢٤ او دَ کِتیم له طرفَ به بیړۍ راشِي او آشور به تنګ کړِي او په
عِیبر به هم ظلم وکړِي چه هغه به هم هلاک شِي
٢٥ ٢٥ او بَلعام پاڅید او روان شه او خپل ځاي ته ورو ګرزید او
بالاق هم خپله لار په وړاندِ ونیوله ✦

## پنځه ویشتم باب

١ آبیا اسرائیل په شِطّیم کښې ورسید او قام دَ موآب دَ جنکو سره زنا
٢ شروع کړله ٢ نو هغه قام دَ خپلو خدایانو قربانو ته وبلل نو قام
٣ وخوړلِ او دَ هغوي خدایانو ته ئي سجدي وکړلِي ٣ او اسرائیل دَ پعُور
دَ بَعَل سره یو ځاي شه او دَ خداوند غضب په اسرائیل باندِ په جوش
٤ شه ٤ نو خداوند موسیٰ ته وویل چه دَ قام ټول سرونه واخله او خداوند
ته ئي په نمر زوړند کړه نو دَ خداوند دَ غضب جوشیدل به له اسرائیل
٥ نه وګرزي ٥ نو موسیٰ دَ اسرائیل قاضیانو ته وویل چه هر یَو دِ هغه
خپل خلق چه دَ بَعَل پعُور سره یَو ځاي شوِي دِي مړه دِ ئي کړِي
٦ ٦ او ګوریُ چه له بنِي‌اسرائیلو نه یَو سړي راغي او دَ موسیٰ دَ سترګو
دَ وړاندِ او دَ بني اسرائیلو دَ ټول جماعت دَ سترګو دَ وړاندِ یَوه مدیانۍ

بنځه خپلو وروڼو ته وراندِ کړله او دوي دَ جماعت دَ خيمي دروازي
څخه ژړل ۷ هر کله چه فِينحاس دَ اَلِيعازار ځوي دَ هارون کوهين ځوي ۷
دغه وليد نو دَ جماعت له مينځ پاځېد او نيزه يُ په لاس کښ واخستله
۸ او په هغه اسرائيلي سړِي پسي خيمي ته ورننوت او دواړه يُ وپيل ۸
هغه اسرائيلي سړي او هغه ښځه په کېدوه نو وبا له بني‌اسرائيلو نه
منع شوله ۹ او هغه چه وبا بانِد مړه وُو څليريشت زرَ وُو ۹
۱۰ نو خداوند موسیٰ سره خبري وکړي و يُ ويل چه ۱۱ فِينحاس دَ ۱۰ ۱۱
اَلِيعازار ځوی دَ هارون کوهين ځوي زما غضب له بني‌اسرائيلو نه وګرزاوه
ځکه ده دَدوي په مينځ کښ زما په غيرت غيرت وکړ دَ دي دَپارَ تر
هغه چه زه بنِي‌اسرائيل په خپل غيرت فنا نه کړم ۱۲ نو ځکه ورته ۱۲
ووايه چه ګوره چه زه وله خپله وعده دَ سلامتيا وعده ورکوم -
۱۳ نو ده له او پس له ده دَده اولاد له به دَهميشه دَپارَ دَ کهانت ۱۳
وعده وِي ځکه چه ده دَ خپل الله دَپارَ غيرت کړي دي او له بنِي‌اسرائيلو
نه يُ کفارت ووکړ ۱۴ او دَ هغه اسرائيلي وژلي شوي سړِي نوم ۱۴
هغه چه دَ مديانيِ ښځي سره وژلي شوي وه زِمري دَ سالو ځوي وه
چه له شمعُونيانو نه دَ پلار دَ کور سردار وه ۱۵ او دَ هغي مديانيِ ۱۵
وژلي شوي ښځي نُوم کزبي دَ صور لور وَه چه هغه په مديان کښ
دَ خپل پلار دَ خيلخانو دَ کور سر وه
۱۶ بيا خداوند دَ موسیٰ سره خبري وکړي و يُ ويل چه ۱۷ مديانيان ۱۶ ۱۷
تنګ کړيِ او و يُ وهيِ ۱۸ ځکه چه دوي په هغو مکرونو خپلو سره تنګ ۱۸
کړي ويِ چه هغه دوي دَ پِعور په کار کښ او دَ کزبي خپلي خور
په کار کښ چه دَ مديان دَ سردار لور وه هغه چه دَ وبا په ورځ
دَ پِعور په سبب وژلي شوي وه مکر کړي وه *

## شپږويشتم باب

۱ او پس له وبا بيا داسي وشوه چه خداوند دَ موسیٰ او دَ اَلِيعازار دَ ۱

۲ هارُون كوهين ځوي سره خبري وكړي و ئې ويل چه ۲ دَ بني‌اسرائيلو
دَ ټول جماعت په شمار له شلو كالو او په پورته ځوان موافق دَ
كورونو دَ پلرونو دَ دوي سره هر يَو دَ لښكر دَپارَ وتونكي په اسرائيل
۳ كښي واخله ۳ نو موسىٰ او اَليعازار كوهين دَ مُوآب په ميدانونو كښ
دَ يردين په غاړه يريحُو ته مخامخ هغوي سره خبري وكړي ورته ئې
۴ وويل چه ۴ تاسو له شلو كالو نه او پورته ځوان (وشماريئ) لكه چه
خداوند موسىٰ ته او بني‌اسرائيلو ته چه دَ مصر له زمكي نه وتونكي
دُو حكم كړي وه
۵ ۵ روبين دَ اسرائيل مشر ځوي دَ روبين زامن حنُوك له هغه
۶ نه قبيله دَ حنُوكيانو له پلُو نه قبيله دَ پلُويانو ۶ له حصرُون نه قبيله
۷ دَ حصرُونيانو له كرمي نه قبيله دَ كرميانو ۷ دا دَ روبينيانو قبيلي دي
او شمار كړي شوي له دوي نه دري څلويښت زرَ او اووه سوَ او ديرش
۹ وُو ۸ او دَ پلُو زامن اَلياب ۹ او بني اَلياب نموئيل او داثان او اَبيرام
هغه وُو بللي شوي له جماعت نه چه دوارو دَ موسىٰ او دَ هارون سره
دَ قورح په جماعت كښ جګړه كړي وَه په هغه وقت كښ چه هغوي
۱۰ دَ خداوند سره جګړه كوله ۱۰ نو زمكي خپله خوله وازه كړله او دَ قورح سره
ئې ونغړدل په هغه وقت كښ چه هغه جماعت دَ اور په سولو باندِ
۱۱ دوه سوَ پنځوس سړي مړه شول نو دوي نښه دَ عبرت شول ۱۱ او بني‌قورح
مړه نه شول
۱۲ ۱۲ بني شمعُون موافق دَ قبيلي دَ هغوي دَ نموئيل قبيله نموئيليان
۱۳ دَ يامين قبيله يامينيان دَ ياكين قبيله ياكينيان ۱۳ دَ زرح قبيله زرحيان
۱۴ دَ شاؤل قبيله شاؤليان ۱۴ دا دَ شمعُونيانو قبيلي دوه ويشت زرَ او
دوه سوَ دي
۱۵ ۱۵ بني‌جاد موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ صفون قبيله صفونيان
۱۶ دَ حجي قبيله حجيان دَ شوني قبيله شونيان ۱۶ دَ اَزني قبيله اَزنيان

دَ عِيرِي قبيله عِيرِيان ١٧ دَ عَرود قبيله عَرودِيان دَ اَرئِيلي قبيله ١٧
اَرئِيليان ١٨ دا دَ جاد دَ اولاد قبيلي دِي موافق دَ حساب دَ هغوي څلوېښت ١٨
زرَ او پنځه سوَ
١٩ بنِي يَهُودا عِير او اُونان دِي او عِير او اُونان دَ كِنعان په زمكه ١٩
كښې مړه دِي ٢٠ نو بنِي يَهُودا موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ شِيله قبيله ٢٠
شِيليان او دَ فَرِص قبيله فَرِصيان او دَ زَرح قبيله زَرحِيان ٢١ او ٢١
دَ بنِي فرِص چه وُو دَ حَصرُون قبيله حَصرُونيان او دَ حامُول قبيله
حامُوليان ٢٢ دا دَ يَهُودا قبيلي موافقي دَ شمار دَ هغوي دِي شپېر اويا ٢٢
زرَ او پنځه سوَ
٢٣ بنِي يَساكار موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ تُولاع قبيله تُولاعيان ٢٣
دَ فوه قبيله فُويان ٢٤ دَ ياشوب قبيله ياشوبيان دَ شِمرُون قبيله ٢٤
شِمرُونيان ٢٥ دا دَ يَساكار قبيلي موافقي دَ شمار دَ هغوي دِي څلور شپېته ٢٥
زرَ او درې سوَ
٢٦ بنِي زَبُولُن موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ سارد قبيله سارديان ٢٦
او دَ ايلُون قبيله ايلونيان او دَ ياحلِيئيل قبيله ياحلِيئيليان ٢٧ دا دَ ٢٧
بنِي زَبُولُن قبيلي موافقي دَ شمار دَ هغوي دِي شپېته زرَ او شپېږ سوَ
٢٨ بنِي يُوسف مَنَسِي او اِفرايِم موافق دَ قبيلو خپلو ٢٩ بنِي مَنَسِي ٢٨ ٢٩
دَ ماكِير قبيله ماكِيريان او له ماكِير جِلعاد پيدا شوي وه او دَ جِلعاد
قبيله جِلعاديان ٣٠ دا بنِي جِلعاد دِي دَ اَليعزر قبيله اَليعزريان دَ ٣٠
حِلِق قبيله حِلِقيان ٣١ دَ اسرِيئيل قبيله اسرِيئيليان دَ شِكم قبيله ٣١
شِكميان ٣٢ دَ شِميداع قبيله شِميداعيان دَ حِفر قبيله حِفريان - ٣٢
٣٣ او دَ صَلافحاد دَ حِفر دَ ځوي ځامن نه وُو بلكه لُونړه وي او دَ ٣٣
صَلافحاد دَ لُونړو نومونه مَحلَه او نوعَه او حُجلَه او مِلكَه او تِرصَه وي
٣٤ دا دَ مَنَسِي قبيلي دِي او هغه شمار كړي شوي له هغوي نه دوه پنځوس ٣٤
زرَ او اووه سوَ وُو

٣٥ ٣٥ او دا بني افرايم دِي موافق دَ قبيلو دَ هغوي سره دَ شُوتالَح قبيله
٣٦ شُوتالَحيان دَ بَکَر قبيله بکَرّيان دَ تَحَن قبيله تَحَنَيان ٣٦ او دا بني شُوتَلَح
٣٧ دِي دَ عِيران قبيله عِيرانيان ٣٧ دا دَ بنيِ افرائِمو قبيلي دي موافقي دَ شمار
دَ هغوي دوديرش زرَ او پنځه سوَ دا بنيِ يوسف دِي موافق دَ قبيلو
٣٨ دَ هغوي ٣٨ بني بنيامين موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ بَلَع قبيله بَلَعيان
٣٩ دَ اَشبِلُ قبيله اُشبِليان دَ اَحِيرام قبيله اَحِيراميان ٣٩ دَ شِفُوفام
٤٠ قبيله شِفُوفاميان دَ حُوفام قبيله حُوفاميان ٤٠ او بنيِ بَلَع اَرد او نُعمان
٤١ وُو دَ اَرد قبيله اَرديان او دَ نُعمان قبيله نُعمانيان ٤١ دا بنيِ بنيامين
دِي موافق دَ قبيلو دَ هغوي او شمار کړِي شوِي له هغوي نه پنځه
٤٢ څلويښت زرَ او شپږ سوَ وُو ٤٢ دا بنيِ دان دِي موافق د قبيلو دَ هغوي
دَ شُوحام قبيله شُوحاميان دا دَ دان قبيلي دِي موافقي دَ قبيلو دَ هغوي
٤٣ ٤٣ ټولي قبيلي دَ شُوحاميانو موافقي دَ شمار دَ هغوي څلور شپيته زرَ
او څلور سوَ وي
٤٤ ٤٤ بنيِ آشَر موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ يِمنه قبيله يِمنيان دَ يَشوِي
٤٥ قبيله يَشوِيان دَ بِرِيعه قبيله بِرِيعِيان ٤٥ بني بِرِيعه دَ حِيبر قبيله
٤٦ حِيبَريان دَ مَلکيئيل قبيله مَلکيئيليان ٤٦ او دَ آشر دَ لُور نُوم سارح
٤٧ وه ٤٧ دا دَ بنيِ آشَر قبيلي دِي موافقي دَ شمار دَ دوي دري پنځوس
زرَ او څلور سوَ
٤٨ ٤٨ بنيِ نفتالِي موافق دَ قبيلو دَ هغوي دَ يَحَصئيل قبيله
٤٩ يَحَصئيليان دَ جُونِي قبيله جُونيان ٤٩ دَ يِيصر قبيله يِيصِريان
٥٠ دَ شِلِيم قبيله شِلِيميان ٥٠ دا دَ نَفتالِي قبيلي دِي موافقي دَ قبيلو
دَ هغوي او شمار کړِي شوِي له هغوي نه پنځه څلويښت زرَ او څلور
٥١ سوَ وُو ٥١ دا هغه شمار کړِي شوِي له بنيِ اسرائيلو نه شپږ لکَ او
يَو زر او اووه سوَ او ديرش دِي
٥٢ ٥٢ بيا خداوند دَ موسىٰ سره خبري وکړي و ئي ويل چه ٥٣ دَ دوي

دَپارَ به زمکه وويشلي شِي په دفتر سره دَ نومُونو په شمار باندِ -
۵۴ هغه چه ډير دِي دَ هغو دَپارَ به دفتر دَ هغوي زيات کړي شي ۵۴
او هغه چه لږ دِي دَ هغوي دَپارَ به دَ هغوي دفتر لږ کړي شي
هريو له به موافقه دَ شمار کړيو شويو دَ هغوي هغوي له دفتر
ورکړي شي ۵۵ هم به پچه سره به زمکه وويشلي شي موافق دَ ۵۵
نومُونو دَ قومونو دَ پلرونو دَ هغوي به دفتريان شي ۵٦ دَپچي په ۵٦
موافق سره به دفتر دَ هغوي دَ ډيرو او دَ لږو په مينځ کښ
وويشلي شي
۵۷ او دا شمار کړي شوي لَه لاويانو نه موافق دَ قبيلو دَ هغوي ۵۷
دَ جِرشُون قبيله جِرشونيان دَ قُهات قبيله قُهاتيان دَ مراري قبيله
مراريان ۵۸ دا دَلاوي قبيلي دِي دَ لِبنيانو قبيله دَ حبرونيانو قبيله ۵۸
دَ مَحلِيانو قبيله دَ موشيانو قبيله دَ قورحيانو قبيله او له قهات
عمرام پيدا شوي وه ۵۹ او دَ عمرام دَ ښځي نوم يُوکبِد وه دَ لاوي لُور ۵۹
وَه هغه چه لاوي له په مصر کښ پيدا شوي وه نو له عمرام نه
هارون او موسیٰ او دَ هغوي خور مريمه پيدا شول ٦٠ او له هارون ٦٠
ناداب او اَبيهو او اَليعازار او ايتامار پيدا شول ٦١ او ناداب او ابيهو ٦١
په سبب دَ نږدي کولو دَ دوي دَ بيگانه اور په حضور کښ دَ خداوند
مړه شول ٦٢ او شمار کړي شوي له هغوي نه درويشت زرَ وُو ٦٢
هر نارينه له مياشتي نه په پورته هلک ځکه چه دوي دَ بني‌اسرائيلو
په مينځ کښ نه وُو شمار کړي شوي ځکه چه دوي له دَ بني‌اسرائيلو
په مينځ کښ دفتر نه وَه ورکړي شوي
٦٣ دا هم هغه دِي چه موسیٰ او اَليعازار کوهين شمارلي وُو ٦٣
چه هغوي بني اسرائيل دَ موآب په ميدانونو کښ دَ يَردين په غاړه
يَريحُو ته مخامخ شمارل ٦۴ نو په دوي کښ يو سړي هم له هغو سرو ٦۴
نه نه وه چه هغوي موسیٰ او هارُون کوهين شمارلي نه وُو په هغه

وقت کښې چه هغوي بني اسرائيل دَ سِيْنا په بيابان کښې شمارلي -
۶۵ ۶۵ ځکه چه خداوند دوي ته ويلي وُو چه دوي به په دغه بيابان کښې
مړه شِي نو له هغوي نه يَو سړي پاتې نه شه مګر کاليب دَ يَفنه
ځوي او يَشُوع دَ نُون ځوي *

# اووه ويشتم باب

۱ ۱ نو دَ صَلُفحَاد ځوي دَ حِيفرَ ځوي دَ جِلعَاد ځوي دَ ماکير ځوي دَ
مَنَسّي له قبيلي دَ مَنَسّي ځوي دَ يُوسف لُوڼړه وراندِ شولي او دَ لُوڼړو
۲ نومونه ئي دا دِي مَحلاه او نوعاه او حُجلاه او مِلکاه او تِرصاه ۲ او دَ
موسیٰ او اِليعازار کوهين دَ وراندِ او دَ سردارانو او ټول جماعت دَ وراندِ
۳ دَ جماعت دَ خيمي درواږي ځنګه ودريدلي و ئي ويل ۳ چه ځمونږ پلار
په بيابان کښې مړ شه او په هغه جماعت کښې چه په خداوند ټول شوي
وه دَ قورح په جماعت کښې نه وه بلکه په خپلي ګناه سره مړ شه او
۴ دَ هغه زامن نه وُو ۴ ځمونږ دَ پلار نوم به دَ هغه دَ قبيلي له مېنځ نه
ځه دِپارَ توکلي شِي نو چه دَ هغه ځوي نشته ځمونږ دَ پلار دَ وروڼړو
۵ په مېنځ کښې مونږ له قبضه دَ ملک واکړئِ ۵ نو دَ هغو دعوه موسیٰ
دَ خداوند دَ وراندِ يوړله
۶ ۶ نو خداوند له موسیٰ سره خبري وکړي و ئي ويل ۷ دَ صَلُفحَاد لُوڼړه
۷ رښتيا وويل نو قبضه دَ دفتر ملک دَ دوي دَ پلار دَ وروڼړو په مېنځ
۸ کښې دوي له ورکړه او دَ دوي دَ پلار دفتر دوي ته را وګرزوه ۸ او
بني اسرائيلو ته ووايه که سړي مړ شِي او ځوي ئي نه وِي نو دَ هغه
۹ دفتر دِ دَ هغه لُور ته را وګرزولي شِي ۹ او که دَ هغه لُور نه وِي نو
۱۰ دفتر ئي دَ هغه وروڼړو له ورکړئِ ۱۰ او که دَ هغه وروڼړه نه وِي نو
۱۱ دفتر ئي دَ هغه دَ پلار وروڼړو له ورکړئِ ۱۱ او که دَ پلار وروڼړه ئي
نه وِي نو دفتر ئي دَ هغه خپلوانو له چه خپلي قبيلي نه ور ته نژدي وِي
ورکړئِ نو دَ هغه وارث به شِي نو دَ بني اسرائيلو دِپارَ دَ قضا حکم به

۱۲ شي لکه چه حکم موسیٰ ته خداوند وکړ ۱۲ او خداوند موسیٰ ته ووېل چه
دي غره دَ عباريم ته وخېژه او هغه مزکه چه ما بني‌اسرائيلو له
۱۳ ورکړي ده وګوره ۱۳ او چه دِ هغه وليدله نو ته هم له خپل قام
۱۴ سره پيوست شه لکه چه ستا ورور هارون پيوست کړي شه ۱۴ ځکه
چه دَ سين په بيابان کښې دَ جماعت دَ جګړي په وقت تاسو ځما
له حکم نه سرکښي وکړله چه دَ هغو دَ سترګو دَ وړاندې په اوبو سره
ځما پاکي وکړئ هغه اوبه دَ مريبې قادش دَ سين په بيابان کښې -
۱۵ ۱۶ ۱۵ نو موسیٰ له خداوند سره خبري وکړي و ئې وېل ۱۶ چه خداوند الله دَ
۱۷ ټولو روحونو دَ ټول انسان دِ يو سړي په جماعت وساتي ۱۷ چه دَ
هغوي دَ وړاندې وزي او دَ هغو دَ وړاندې ننوزي او دوي وباسي او ننباسي
ئې چه دَ خداوند جماعت دَ هغو ګډو په شان نه شي هغه چه شپون
۱۸ ئې نه وي ۱۸ نو خداوند موسیٰ ته ووېل چه يشوع دَ نون ځوي واخله
۱۹ سړي دي چه په کښې روح دَي او خپل لاس پرِ کيږده ۱۹ او دَ اليعازار
کوهين دَ وړاندې او دَ ټول جماعت دَ وړاندې ئې ودروه او دَ هغو دَ
۲۰ سترګو دَ وړاندې ورته حکم وکړه ۲۰ او له خپل هيبت نه پرِ واچوه چه
۲۱ ټول جماعت دَ بني‌اسرائيل دَ هغه اوري ۲۱ نو دَ اليعازار کوهين دَ
وړاندې دِ ودريږي چه دَ هغه دَپاره دَ خداوند دَ وړاندې دَ اوريم په حکم
سره سوال وکړي او دَ هغه دَ وېلو په شان وزي او دَ هغه دَ وېلو
۲۲ په شان ننوزي هغه او ټول بني اسرائيل ورسره ټول جماعت ۲۲ نو
موسیٰ لکه چه خداوند ورته حکم کړي وه وکړل يشوع ئې ونيو او دَ اليعازار
۲۳ کوهين دَ وړاندې او دَ ټول جماعت دَ وړاندې ئې ودراوه ۲۳ او خپل لاسونه
ئې پرِ واچول او لکه چه خداوند دَ موسیٰ په لاس خبري کړي وي ورته
ئې حکم وکړ +

## اته وېشتم باب

۱ ۲ ۱ او خداوند له موسیٰ سره خبري وکړي و ئې وېل ۲ چه بني‌اسرائيلو ته

حکم وکړه او ورته ووایه څما قرباني څما ډوډۍ څما د سیزلو له قربانو
سره څما خوشبوئي یاد لرئ چه په خپل وقت کښ ئي ما ته نژدي کړئ
۳ ۳ او ورته ووایه چه دا هغه د سیزلو قرباني دي چه خداوند ته به ئي
نژدي کوئ یو کلني بيعیب دوه ګډوري هره ورځ د مدام د سیزلو
۴ د قرباني د پاره ۴ یو ګډوري صبا په عمل راوړه او دویم ګډوري د
۵ نمرپریواته نماښام په مینځ کښ په عمل راوړه ۵ او لسمه حصه د ایفي
له میدي نه اخښلي شوي په څلورمي حصي د هین له تیلو تلیدلیو نه
۶ د میدي د قرباني د پاره ۶ دا د سیزلو مدامي قرباني ده چه د سینا په
۷ غره کښ عمل کړي شوي وه چه د خوشبوئي د پاره ده ۷ او د هغي د تویولو
قرباني څلورمه حصه د هین د یو ګډوري د پاره په قدس کښ توي کړئ
۸ د تویولو مسکر د خداوند د پاره ۸ او دویم ګډوري په عمل راوړه د نمرپریواته
او د نماښام په مینځ کښ د وختي د هدیي د قرباني په شان او د هغي
د توئ کړي شوي په شان ئي په عمل راوړه د اور قرباني خوشبوئ د
خداوند د پاره
۹ ۹ او د سبت په ورځي دوه ګډوري یو کلني بيعیب او دوه لسمي
حصي له میدي نه په تیلو اخښلي شوي سره له تویولو د هدیي د
۱۰ قرباني د پاره ۱۰ دا د هر سبت د سولو قرباني ده بي د مدام د سیزلو
له قرباني نه او د تویولو له قرباني نه
۱۱ ۱۱ او ستاسو د میاشتو په سرونو کښ د خداوند د پاره د سیزلو
قرباني وکړئ دوه سخوندر او یو اړزکي او اووه ګډوري یو کلني بيعیب
۱۲ ۱۲ او دري لسمي حصي له میدي نه په تیلو اخښلي شوي د هدیي قرباني
د هر سخوندر د پاره او دوه لسمي حصي د میدي په تیلو اخښلي شوي
۱۳ د هدیي قرباني ده د یو اړزي د پاره ۱۳ او یوه لسمه حصه له میدي نه
په تیلو اخښلي شوي د هدیي قرباني ده د هر ګډوري د پاره د سیزلو
۱۴ قرباني خوشبوئ د اور قرباني د خداوند د پاره ۱۴ او د هغو د تویولو قرباني

نیمه حِصّه دَ هِین دَ سخوندر دَپارَ او دریمه حِصّه دَ هِین دَ اِزرِي
دَپارَ او څلورمه حِصّه دَ اِزرِي دَپارَ به شِي له مُسکر نه دا دَ سیزلو
قربانِئ دَ هري میاشتي دَکال له میاشتو نه دِی ۱۵ او یَو ورغومَي دَ ۱۵
خداوند دَ خطا قرباني ده بي دَ مُدام دَ سیزلو له قربانِئ نه قرباني دِ کړي
سره له تویولو له قربانِئ ۱۶ او په ورنبئِ میاشتي کښ په څوارلسمي ورځي ۱۶
کښ له میاشتي نه فصح دَه دَ خداوند دَپارَ ۱۷ او په پنځلسمي ورځي کښ ۱۷
له دي میاشتي نه اختر دَي اووه ورځي دِ فطیره ډوډئِ وخوړي شِي۔
۱۸ په ورنبي ورځي به مجلس دَ مُقَدَّس وِي هیڅ عمل دَخدمت په عمل مه راوړِئ ۱۸
۱۹ او قرباني وکړئ په اور سیزلي قرباني دَ خداوند دَپارَ دوه سخوندرَ ۱۹
او یَو اِزرَي او اووه کډورِي یَو کلَنِي بي عیبَ ستاسو دَپارَ به وِي۔
۲۰ او دَ هدیي دَ قربانِي ئي له میدي اخښلي شوي په تیلو سره دَ ۲۰
سخوندر دَپارَ دري لسمي حِصّي به عمل راوړِئ او دوه لسمي حِصّي دَ
اِزرِي دَپارَ ۲۱ او یَوه لسمه حِصّه دَپارَ دَ هر کډورِي له اووه ۲۱
کډورو نه به عمل راوړه ۲۲ او یَو ورغومَي دَ خطا دَ قربانِئ له تاسو ۲۲
نه دَکفاري دَپارَ ۲۳ بي دَ وختِي دَ سیزلو له قربانِئ نه هغه چه دَ ۲۳
مُدام دَ سیزلو دَ قربانِئ دَپارَ دِي دا به عمل راوړِئ ۲۴ په دي شان ۲۴
سره هره ورځ اووه ورځي دَ اور طعام دَ خداوند دَ خوشبوي دَپارَ په
عمل راوړِئ بي دَ مُدام دَ سیزلو له قربانِئ نه او له تویولو نه ئي به
عمل دِ راوړي شِي ۲۵ او په اوومي ورځي کښ به ستاسو دَپارَ مُقَدَّس ۲۵
جماعت وِي هیڅ کار له خدمت نه په عمل مه راوړِئ

۲۶ او دَ نوي میوي په ورځي کښ په هغه وقت چه تاسو دَ نوي ۲۶
هدیي قربانِئ کوئِ دَ خداوند دَپارَ په خپلو هفتو کښ ستاسو دَپارَ به
مُقَدَّس جماعت وِي هیڅ کار له خدمت نه په عمل مه راوړِئ ۲۷ او ۲۷
تاسو دَ سیزلو قرباني کوئِ دَ خوشبوئِ دَ خداوند دَپارَ دوه سخوندرَ او
یَو اِزرَي او اووه کډورِي یَو کلَنِي ۲۸ او دَ هغو دَ هدیي قرباني له میدي ۲۸

اخښلي شوي په تيلو دري لسمي حِصّي دَ هر سخوندر دَپارَ او دوه لسمي
۲۹ حِصّي دَ يَو گډوري دَپارَ دي ۲۹ او يَوه لسمه حِصّه دَ هر گډوري دَپارَ
۳۰ ۳۱ له اووه گډورو نه ۳۰ او يَو ورغومي دَ كفاري دَپارَ له تاسو نه ۳۱ بي
دَ مُدامي سيزلو له قرباني نه او دَ هغو دَ هديي له قرباني نه په عمل
راوړيِ دَ هغو دَ توييولو له قربانيِ سره ستاسو دَپارَ به بي‌عيب ثِي +

# نهه ويشتم باب

۱ ۱ او په اوومي مياشتي كښې په ورښيَ ورځي له مياشتي نه ستاسو
دَپارَ به مُقدّس جماعت وِي هيڅ كار له خدمت نه به عمل مه راوړيِ
۲ ستاسو دَپارَ دَ قرنا پوكلو ورځ به وِي ۲ او دَ سيزلو قرباني خوشبويي
دَ خداوند دَپارَ يَو سخوندر او يَو اِزري او اووه گډوري يَو كلِني بي‌عيب
۳ په عمل راوړيِ ۳ او دَ هغو دَ هديي قرباني له ميدي نه په تيلو
اخښلي شوي دري لسمي حِصّي دَ سخوندر دَپارَ او دوه لسمي حِصّي
۴ دَ اِزري دَپارَ دِي ۴ او يَوه لسمه حِصّه دَ هر گډوري دَپارَ له اووه گډورو
۵ نه ده ۵ او يَو ورغومي دَ خطا دَ قربانيِ له تاسو نه دَ كفاري دَپارَ دي
۶ ۶ بي دَ مياشتي دَ سيزلو له قربانيِ نه او دَ هغي دَ هديي له قربانيِ نه
او دَ مدام دَ سيزلِو له قربانيِ نه او دَ هغي دَ هديي له قربانيِ دَ هغو
دَ توييولو له قربانيِ سره دَ هغو دَ عادت په شان خوشبوي دَ اور قرباني
دَ خداوند دَپارَ
۷ ۷ او په لسمي ورځي دَ دي اوومي مياشتي كښې ستاسو دَپارَ به
مُقدّس جماعت وِي او تاسو خپل ځانونه ورنځويِ هيڅ كار به عمل مه
۸ راوړيِ ۸ او دَ خداوند دَپارَ دَ سيزلو قرباني وكړيِ خوشبوي يَو سخوندر
۹ او يَو اِزري او اووه گډوري يَو كلِني بي‌عيب ستاسو دَپارَ به وِي ۹ او
دَ هغو دَ هديي قرباني له ميدي نه په تيلو اخښلي شوي دري لسمي
۱۰ حِصّي دَ سخوندر دَپارَ او دوه لسمي حِصّي دَ يَو اِزري دَپارَ ۱۰ او يَوه لسمه
۱۱ حِصّه دَ هر گډوري دَپارَ له اووه گډورو نه ۱۱ او يَو ورغومي قرباني دَ

خطا نه چه دَ کفاري دَپارَ وِي او دَ سيزلو له قربانئِ او دَ هديي له
قربانئِ نه ئي او دَ هغو دَ تويولو له قربانو سره
۱۲ او په يَخلسمي ورځي کښ له اوومي مياشت نه ستاسو دَپارَ ۱۲
به مُقَدَّس جماعت وِي هيڅ کار له خدمت نه په عمل مه راوړئِ او
اووه ورځي دَ خداوند دَپارَ اختر کوئِ ۱۳ او دَ سيزلو قربانئِ وکړئِ دَ ۱۳
اور قربانئِ خوشبوي دَ خداوند دَپارَ ديارلس سخوندرَ او دوه اِرَړي او
څوارلس کډوري يَو کلنِي بيعيب ستاسو دَپارَ به وِي ۱۴ او دَ هغو ۱۴
دَ هديي قرباني له ميدي اخښلي شوي په تيلو دري لسمي حِصّي دَ
هر سخوندر دَپارَ له ديارلسو سخوندرو او دوه لسمي حِصّي دَ هر
اِرَړي دَپارَ له دوو اِرَړو نه ۱۵ او يَوه لسمه حِصّه دَ هر کډوري دَپارَ ۱۵
له څوارلسو کډورو نه ۱۶ او يَو ورغومي قرباني دَ خطا بي دَ مدام دَ سيزلو ۱۶
له قربانئِ نه او دَ هغي دَ هديي له قربانئِ نه او دَ تويولو له قربانئِ نه ئي
۱۷ او په دويمي ورځي کښ دولس سخوندرَ او دوه اِرَړي او ۱۷
څوارلس کډوري يَو کلنِي بيعيبَ ۱۸ او دَ هغو دَ هديي قرباني او دَ ۱۸
هغو دَ تويولو قرباني دَ سخوندرو او دَ اِرَړو او دَ کډورو دَپارَ دَ
هغو دَ شمار په شان دَ عادت په خير دِ وشِي ۱۹ او يَو ورغومي ۱۹
دَ خطا قرباني بي دَ مدام له سيزلو له قربانئِ او دَ هغي دَ هديي له
قربانئِ نه دَ هغو دَ تويولو له قربانئِ سره
۲۰ او په دريمي ورځي کښ يَوولس سخوندرَ او دوه اِرَړي او څوارلس ۲۰
کډوري يَو کلنِي بيعيبَ ۲۱ او دَ هغو دَ هديي قرباني او دَ هغو دَ ۲۱
تويولو قرباني دَ سخوندرو او دَ اِرَړو او دَ کډورو دَپارَ دَ هغو دَ
شمار په شان دَ عادت په خير به وِي ۲۲ او يَو ورغومي قرباني دَ ۲۲
خطا بي دَ مدام دَ سيزلو له قربانئِ نه او دَ هغي دَ هديي له قربانئِ
نه او دَ هغي دَ تويولو له قربانئِ نه
۲۳ او په څلورمي ورځي کښ لس سخوندرَ او دوه اِرَړي او څوارلس ۲۳

۲۴ کډوري يَوَ کلني بيعيبَ ۲۴ او دَ هغو دَ هدبي قرباني او دَ هغو دَ تويولو
قرباني دَ سخوندرو او دَ اررو او کډورو دَپارَ دَ هغو دَ شمار په شان
۲۵ دَ عادت په خير به وِي ۲۵ او يَو ورغومي قرباني دَ خطا بي دَ مدام دَ سيزلو
له قربانئِ نه او دَ هغي دَ هديي له قربانئِ او دَ هغي دَ تويولو له قربانئِ نه
۲۶ ۲۶ او په پنځمي ورځي کښ نهه سخوندرَ او دوه اِزري اوڅوارلس
۲۷ کډوري يَو کلنِي بيعيب به وِي ۲۷ او دَ هغو دَ هديي قرباني او دَ هغو
دَ تويولو قرباني دَ سخوندرو او دَ اِزرو او دَ کډورو دَپارَ دَ هغو دَ
۲۸ شمار په شان دَ عادت په سير به وِي ۲۸ او يَو ورغُومي قرباني دَ خطا
بي دَ مدام دَ سيزلو له قربانِي نه او دَ هغي دَ هديي له قربانئِ نه او دَ هغي
دَ تويولو له قربانئِ نه
۲۹ ۲۹ او په شپږمي ورځي کښ اته سخوندرَ او دوه اِزري اوڅوارلس
۳۰ کډوري يَو کلنِي بيعيبَ ۳۰ او دَ هغو دَ هديي قرباني او دَ هغو دَ تويولو
قرباني دَ سخوندرو او دَ اِزرو او دَ کډورو دَپارَ دَ هغو دَ شمار په
۳۱ شان دَ عادت په خير به وِي ۳۱ او يَو ورغومي دَ خطا دَ قربانئِ دَپارَ
بي دَ مدام دَ سيزلو له قربانئِ او دَ هغي دَ هديي له قربانئِ او دَ هغي
دَ تويولو له قربانئِ نه
۳۲ ۳۲ او په اوومي ورځي کښ اووه سخوندرَ او دوه اِزري اوڅوارلس
۳۳ کډوري يَو کلنِي بيعيب ۳۳ او دَ هغو دَ هديي قرباني او دَ هغو دَ
تويولو قرباني دَ سخوندرو او دَ اِزرو او دَ کډورو دَپارَ دَ هغو
۳۴ دَ شمار په شان دَ عادت په خير به وِي ۳۴ او يَو ورغومِي دَ خطا
دَ قرباني دَپارَ بي دَ مدام دَ سيزلو له قربانئِ او دَ هغي دَ هديي
له قربانئِ او دَ هغي دَ تويولو له قربانئِ نه
۳۵ ۳۵ او په اتمي ورځي کښ ستاسو دَپارَ به اعتکاف وِي هيڅ کار
۳۶ له خدمت نه په عمل مه راورِئِ ۳۶ او دَ سيزلو قرباني وکړئِ دَ
اور قرباني خوشبويَ دَ خداوند دَپارَ يَو سخوندر او يَو اِزري او اووه

کډورِي يَو کلني بيعيب ۳۷ او دَ هغو دَ هديي قرباني او دَ هغو دَ تويولو ۳۷
قرباني دَ سخوندر او دَ اِرړي او دَ ګډورو دَپاره دَ هغو دَ شمار په شان
دَ عادت په خير به وِي ۳۸ او يَو ورغومي دَ خطا دَ قرباني دَپاره بي دَ ۳۸
مدام دَ سيزلو له قربانئ او دَ هغي دَ هديي له قربانئ او دَ هغي دَ
تويولو له قربانئ نه ۳۹ دادِي چه تاسو به ئي قرباني کوئِ په خپلو اختړونو ۳۹
کښِ دَ خداوند دَپارَ بي دَ نذرونو له قربانو ستاسو نه او دَ نفلونو له
قربانو ستاسو نه او دَ سيزلو له قربانو ستاسو نه او دَ هديي له قربانو
ستاسو نه او دَ تويولو له قربانو ستاسو نه او دَ سلامتيا له قربانو
ستاسو نه ۴۰ نو موسیٰ له بنياسرائيلو سره خبري وکړي په شان دَ ټول ۴۰
هغه څه چه دَ هغه خداوند ورته حکم کړي وَه +

# ديرشم باب

۱ او موسیٰ دَ بنياسرائيلو په باب کښِ دَ فرقو له سردارانو سره ۱
خبري وکړي وئي ويل چه دا هغه دِي چه خداوند ئي حکم کړي دي-
۲ که چا سړِي نذر منلي وِي دَ خداوند دَپارَ يا ئي سوګند خوړلي وِي چه ۲
خپل ځان ئي بند کړي وِي په لازم سره نو دَده ويل به نه باطلَيږي
په شان دَ ټول هغه به کوئِ چه دَده له خولي نه وتلي وِي ۳ او که ۳
ښځه وِي نو که دَ خداوند دَپارَ ئي نذر منلي وِي او لازم کړي ئي وِي دَ
خپل پلار په کور کښِ په خپل پيغلتوب کښ ۴ او دَ هغي پلار دَ هغي ۴
نذر واوريد او هغه لازم چه دي خپل ځان بند کړي وه په هغه سره
نو که دَ هغي پلار دَ هغي دَپارَ چپ شه نو ثابت به پاتي شِي دَ هغي ټول
نذرونه او ټولي لازمي ئي هغه چه ځان ئي بند کړي وه په هغو سره
ثابت به پاتي شِي ۵ او که دَ دي پلار دا منع کړه په هغي ورځي چه ئي ۵
واوريد نو ټول نذرونه دَ دي او لازمي ئي هغه چه ئي خپل ځان ورسره
بند کړي وه ثابت به پاتي نه شِي او خداوند به هغه معافه کړِي ځکه چه
دَ هغي پلار هغه منع کړله ۶ او که چړي دَ خښتن وِي او دَ هغي نذرونه ۶

په هغې وِيې يا دَ هغې دَ شونډو ويل هغه چه دي خپل ځان پرِ بند
٧ کړي وه ٧ او دَ هغې خښتن واوريدل نو په هغې ورځې کښ چه ئې
واوريدل چپ شوې وِيې نو دَ هغې نذرونه به ثابت وِيې او دَ هغې لازمي
٨ هغه چه دي ځان خپل پرِ بند کړي وه ثابت به پاتي شِي ٨ او که دَ
هغې خښتن هغه منع کړلهِ په هغې ورځې کښ چه ئې واوريدل نو
نذر ئې هغه چه ورباندِ دَي يا دَدي دَ شونډو ويل هغه چه دي
٩ خپل ځان پرِ بند کړي وه باطليږي او خداوند به ئې مُعاف کړي ٩ او نذر
دَ کُنډې يا دَ طلاقي نو تړول هغه چه ئې په خپل ځان لازم کړي وه
١٠ په هغې به ثابت پاتي شِي ١٠ ولي که چرې دَ خپل خښتن په کور
کښ ئې نذر منلي وه يا ئې په خپل ځان په سوګند لازم کړي وه-
١١ ١١ او دَ هغې خښتن واوريدل نو که پرِ چپ شه او منع ئې نه کړله نو
تړول نذرونه به ئې ثابت شِي او تړول لازم چه ئې خپل ځان پرِ بند
١٢ کړي وَه ثابت به شِي ١٢ او که دَ هغې خښتن هغه مات کړل په هغې
ورځې کښ چه ئې واوريدل نو تړول هغه چه دَ دي له شونډو نه وتلي
وِيې دَ هغې له نذرونو نه يا له لوازم نه په خپل ځان نه به ثابتيږي
چه دَ هغې خښتن مات کړي دِي او خداوند به ئې له هغې نه مُعاف
١٣ کړي ١٣ هر نذر او هر سوګند دَ ځان دَ رنځولو دَپارَ خښتن ئې
١٤ هغه ثابتولي شِي او خښتن ئې هغه ماتولي شِي ١٤ او که دَ
هغې خښتن هره ورځ پرِ چپ شِي نو هغه تړول نذرونه دَ هغې ئې ثابت
کړل يا تړولي لازمي دَ هغې هغه چه په هغې دِي هغه ئې ثابت کړل ځکه
چه دَ هغو دَپارَ چپ شه په هغې ورځې کښ چه ده واوريدل -
١٥ ١٥ نو که ده هغه مات کړل پس له خپلو اوريدلو نه نو دَ هغې ګناه
١٦ ئې پورته کړله ١٦ دا هغه شريعتونه دِي چه خداوند موسیٰ ته حکم وکړ
دَ خښتن او دَ ښځې په مينځ کښ او دَ پلار او دَ لُور په مينځ کښ
په پيغلتوب کښ دَ پلار په کور کښ +

# یو دیرشم باب

۱ او خداوند دَ موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې وئيل ۲ چه دَ بنيِ‌اسرائيلو ۱ ۲
دَپارَ له مديانو نه بدل واخله بيا له خپل قام سره پيوست شه
۳ نو موسیٰ له قام سره خبرې وکړې و ئې وئيل چه دَ جنګ دَپارَ ۳
له تاسو نه سړي تيار کړئ نو په مديان دِ ورشي چه بدل دَ خداوند
له مديان نه واخلي ۴ له هرې فرقې نه يَو زر دَ اسرائيل له ټولو ۴
فرقو نه دَ جنګ دَپارَ واستوئ ۵ نو اختيار کړې شول دَ اسرائيل له ۵
زرګونو نه زر له هرې فرقې نه دولس زرَ تيار وُو دَ جنګ دَپارَ ۶ نو ۶
موسیٰ هغوي واستول زر تنه له هرې فرقې نه دَ جنګ دَپارَ هغوي
او فينحاس ځوي دَ اليعازار کوهين جنګ ته او اسبابونه دَ قُدس او قرناګانې
دَ غبرولو دَ هغه ئې په لاس کښې وې ۷ نو له مديان سره ئې جنګ وکړ ۷
لکه چه خداوند حکم کړې وه او ټول نر ئې قتل کړل ۸ او دَ مديان ۸
بادشاهان ئې دَ هغو دَ وژليو شويو دَپاسه قتل کړل اَوِي او رَقَم
او صُور او حُور او رَبع پنځه بادشاهان دَ مديان او بَلعام دَ بِعور
ځوي ئې په تُوره ووژه ۹ او بنيِ‌اسرائيلو دَ مديان ښځې او دَ هغو زامن ۹
لُونړه بنديان کړل او دَ هغو ټول څاروِي ئې لُوټ کړل او دَ هغو ټول
ډِنګر او دَ هغو ټول مالُونه ۱۰ او دَ هغو ټول ښهرونه دَ هغو دَ اَستوګنې ۱۰
او دَ هغو ټولې قلاٴ ئې په اور و سيزلې ۱۱ او ټول لُوټ او ټول تالا
کړې مال له سړي او له څاروِي نه ئې واخستل ۱۲ نو موسیٰ او ۱۲
اَليعازار کوهين او دَ بنيِ‌اسرائيلو جَماعت له بنديانو او له تالا مالَ
او له لوټ نه ډيرې ته دَ مُوآب په بيابانونو کښې له هغه نه چه دَ
يَردين په غاړې يَريحُو ته مخامخ وه رائې وستل ۱۳ نو موسیٰ او اَليعازار ۱۳
کوهِين او دَ جَماعت ټول سرداران دَ هغو مخې ته له ډيرې نه بهر
ووتل ۱۴ نو موسیٰ دَ لښکر په منصبدارانو چه سرداران دَ زرګونو ۱۴

او سرداران دَ سَلګونو چه دَ جنګ له لښکره نه راغلي وُو په قهر شه
۱۵ ۱۵ او موسیٰ ورته وویل چه آیا ټولې ښځې مو ژوندۍ پرېښودلې څه ؟
۱۶ ۱۶ دا دِي دوي دَ بني‌اسرائیلو دَپارَ دَ بَلْعام دَ ویلو په شان دَ فِعُور په
۱۷ عمل کښې سبب دَ ګناه شولي نو دَ خداوند په جماعت کښې وَبا شوله ۱۷ نو
اوس هر نر له وړکوټيو نه ووژنۍ او هره ښځه چه سړي پېژني دَ نر
۱۸ په څملاستلو دِ ئې وژني ۱۸ ولې ټول وړوکي له ښځو نه هغه چه نه پېژني
۱۹ دَ نر څملاستل و ئې ساتۍ ستاسو دَپارَ دِ ژوندۍ وي ۱۹ او تاسو
ئې بهر له ډېري نه واړوئ اووه ورځي هرچا چه څوک وژلي وي او هر
چا چه وژلي شوي مسح کړي وي په دریمه ورځ پاک شئ او په اوومي ورځي
۲۰ تاسو او ستاسو بندیان ۲۰ او ټول زروکي او ټول اسباب له څرمني
نه او ټول جوړ شوي له وژغوني نه او ټول اسباب له لرګي نه هغه
پاک کړئ

۲۱ ۲۱ اِلیعازار کوهین دَ لښکر سړو ته هغه چه دَ جنګ دَپارَ تلي وُو
وویل چه دا دي حکم دَ شریعت هغه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه
۲۲ ۲۲ خالِص سره زر او سپین زر او مِس او اُسپنه او سِکّه او قلائي
۲۳ ۲۳ ټول هغه چه په اور کښې اچولي شِي نو پاک به شِي خو هغه دِ
دَ پلیتیٔ دَ لري کولو په اوبو سره پاک کړي شِي او هرڅه چه په اور
۲۴ کښې اچولي نه شِي نو په اوبو کښې دِ ئې وغورزوي ۲۴ او په اوومي ورځي
خپل زروکي ووینځئ نو تاسو به پاک شئ او پس له هغي په ډېري
داخل شئ

۲۵ ۲۶ ۲۵ او خداوند له موسیٰ سره خبري وکړي و ئې ویل ۲۶ چه ته او
اِلیعازار کوهین او سرداران دَ پلرونو دَ جماعت لوټ بند کړي شوي له
۲۷ خلقو نه او له څاروو نه وشماره ۲۷ او لوټ دَ هغو په مینځ کښې چه
جنګیان وُو او دَ جنګ دَپارَ وتلي وُو او دَ ټول جماعت په مینځ کښې
۲۸ ئې نیم کړه ۲۸ او له جنګیانو سړو نه چه دَ جنګ دَپارَ وتلي وُو یو

ثان دار له هر پنځو سوو نه له سري نه او له غوايانو نه او له خرو
نه او له ګډو نه دَ خداوند دَپارَ زکاة واخله ٢٩ دَ هغو له نيمي نه ئې ٢٩
واخله او اَلِيعٰازار کوهين له ئې ورکړه دَ پورته کولو قربانِي دَ خداوند دَپارَ
٣٠ او دَ بنيِاسرائيلو له نيمي نه له هر پنځوسو نه يَو واخله له ٣٠
سړو نه او له غوايانو نه او له خرو نه او له ګډو نه له ټولو څارويو
نه او لاويانو له چه دَ خداوند دَ مسکن دَ ساتني ساتونکي دِي ور ئې کړه
٣١ نو موسىٰ او اَلِيعٰازار کوهين لکه چه خداوند موسىٰ ته حکم کړي وه ٣١
و ئې کړل ٣٢ او لُوټ چه باقِي دَ لُوټ وه هغه چه دَ لښکر سړو لُوټ ٣٢
کړي وه له ګډو نه شپږ سوه زرَ او اويا زرَ او پنځه زرَ وي ٣٣ او له ٣٣
غوايانو نه دوه او اويا زرَ وُو ٣٤ او له خرو نه يَو او شپيته زرَ وُو ٣٤
٣٥ او له ښځو خلقو نه له ښځو نه هغه چه ئې څملاستل له نرسړه ٣٥
نه پيژندل ټولي ښځي دوديرش زرَ وي ٣٦ او نيمه حِصّه دَ جنګيانو دَ ٣٦
ګډو شمار درې سوَ زرَ او اووه زرَ او ديرش زرَ او پنځه سوَ وه ٣٧ او ٣٧
دَ خداوند دَپارَ زکاة له ګډو نه شپږ سوَ او پنځه اويا وي ٣٨ او غوايان شپږ ٣٨
او ديرش زرَ وُو او دَ هغو زکاة دَ خداوند دَپارَ دوه اويا وُو ٣٩ او خره ديرش ٣٩
زرَ او پنځه سوَ وُو او دَ هغو زکاة دَ خداوند دَپارَ يوشپيته وُو ٤٠ او ښځي خلق ٤٠
شپاړس زرَ او دَ هغو زکاة دَ خداوند دَپارَ دوه او ديرش ښځي وُو ٤١ نو ٤١
موسىٰ زکاة دَ پورته کولو قربانِي دَ خداوند اَلِيعٰازار کوهين له ورکړه لکه چه
خداوند حکم کړي وه موسىٰ ته ٤٢ او نيمه حِصّه دَ بنيِاسرائيل هغه چه ٤٢
موسىٰ ويشلي وُو له جنګيانو سړو نه ٤٣ نو نيمه دَ جُماعت له ګډو نه درې ٤٣
سوَ زرَ او ديرش زرَ او اووه زرَ او پنځه سوَ وي ٤٤ او له غوايانو نه ٤٤
شپږ او ديرش زرَ وُو ٤٥ او له خرو نه ديرش زرَ او شپږ سوَ ٤٦ او ٤٥ ٤٦
له ښځو خلقو نه شپاړس زرَ ٤٧ نو موسىٰ واخستل له نيمي حِصّي ٤٧
دَ بنيِاسرائيلو نه چه اخستلي شوي وه يَو له هر پنځوسو نه له خلقو نه
او له څارويو نه او لاويانو له ئې ورکړل چه دَ خداوند دَ مسکن دَ ساتني

ساتونکي وُو لکه چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وَه
۴۸ ۴۸ بیا موسیٰ ته وړاندِ شول منصب داران هغه چه دَ لښکرو په
۴۹ زرګونو مقرّر وُو سرداران دَ زرګونو او سرداران دَ سوونو ۴۹ او موسیٰ
ته يُ وويل چه ستا مريونو دَ جنګ دَ سړو شمار هغه چه څمونږ په
۵۰ لاسونو کښں وُو واخست او له مونږ نه څوک ورک نه شه ۵۰ نو مونږ
راوړي دِي قربانيِ دَ خداوند هر يو هغه چه يُ هغه موندلي دِي مالونه دَ
سرو زرو کړي او ګنګڼ او ګوتي او لښتيِ او ګټمالی دَ کفاري دَپارَ له
۵۱ خپلو ځانونو نه دَ خداوند دَ وړاندِ ۵۱ نو موسیٰ او اَلِيعازار کوهين له هغو
۵۲ نه سره زر تول اسبابونه جوړ کړي شوِي واخستل ۵۲ او ټول سره زر
دَ پورته کولو قربانيِ هغه چه يُ پورته کړي وي دَ خداوند دَپارَ شپاړس زرَ
او اووه سوَ او پنځوس مثقالَ وُو دَ زرګونو دَ سردارانو او دَ سونو دَ
۵۳ سردارانو له طرفُ ۵۳ هر چه دَ لښکر سړي وُو نو هر يو دَ ځان دَپارَ
۵۴ لُوټ کړي وه ۵۴ نو موسیٰ دَ اَلِيعازار کوهين دَ زرګونو له سردارانو نه
او دَ سوونو نه واخستل او دَ جُماعت خيمي له يُ راوړل چه دَ بنيِاسرائيلو
دَپارَ دَ خداوند دَ وړاندِ يادګيري وِي +

# دوديرشم باب

۱ ۱ او دَ بني روبين او دَ بنيِ جاد دَ هغو مال ډير وه نو هر کله چه هغو
دَ يَعزير مزکه او دَ جِلعاد مزکه وليدله چه دا ځاي ځاي دَ مال دي
۲ ۲ بنيِ جاد او بنيِ روبين راغلل او موسیٰ او اَلِيعازار کوهين او دَ جُماعت
۳ له سردارانو سره يُ خبري وکړي و يُ ويل ۳ چه عطاروت او دِيبون او
يَعزير او نمراه او حَشبون او اَلعاليه او سبام او نبو او بعون -
۴ ۴ چه هغه مزکه چه هغه خداوند دَ بنيِاسرائيلو دَ وړاندِ ووهله هغه
۵ دَ مال مزکه ده او ستا دَ مريونو مال دي ۵ بيا يُ وويل که چيري ستا
په سترګو کښں مونږ ښه ښکاريږو نو خپلو مريونو له دا مزکه دفتر
۶ ورکړه او مونږ له يردين نه ميه پوريباسه ۶ نو موسیٰ بنيِجاد او بنيِروبين

ته وویل چه آیا ستاسو وروڼه دِ جنګ له لاړ شي او تاسو به ناست
اوسئ دلته څه ؟ ٧ نو دَ بني‌اسرائیلو زړونه څله . له پورې وتلو نه جارباسئ ٧
هغې مزکې ته چه هغو له خداوند ورکړې دَه ٨ په دې شان ستاسو پلار ٨
نیکونو کار کړې وه هر کله چه ما له قادیش بَرنِعْ نه واستول چه مزکه
وګورې ٩ دَ اَشکول خوړ ته وختل او مزکه ئې ولیدله او دَ بني‌اسرائیلو ٩
زړونه ئې وګرزول دَ هغې مزکې له داخلیدلو نه چه خداوند دوې له ورکړې
وه ١٠ نو په هغې ورځې کښ دَ خداوند غضب په جوش شه او قسم ئې وخوړ ١٠
و ئې ویل ١١ هغه خلق چه له مصر نه راوتلي دِي دَ شلو کالو او به
پورته له هغه نه هغه مزکه به و نه وینې چه ما قسم خوړلې وه
له ابراهام او اسحاق او یعقوب سره ځکه چه دوې بالکل ځما تابعدارې
و نه کړه ١٢ بې له کالِب دَ څوې دَ یَفُنّه قنیزي نه او له یَشُوع څوې ١٢
دَ نُون نه ځکه چه دوې بالکل تابعدارې دَ خداوند وکړله ١٣ نو دَ خداوند ١٣
غضب په اسرائیل وجوشید او هغوې ئې څلویښت کاله په بیابان
کښ وګرزول تر هغه پورې چه ټوله پیړئ چه دَ خداوند په نظر کښ
ئې شر کړې وه فنا شول ١٤ نو ګورئ تاسو دَ خپلو پلرونو بدله ټولي ١٤
دَ ګناه‌ګارو خلقو پورته شوې يئِ چه تاسو هم کړې دَ غضب دَ خداوند په
اسرائیل زیاته کړئ ١٥ هر کله چه تاسو وجاروزئ دَ هغه له پیروې ١٥
نه دوباره به ئې هم په بیابان کښ پریږدئ نو دا ټول قام به هلاک کړئ
١٦ نو دوې ورته نزدې شول او و ئې ویل چه مونږ به دلته ١٦
شپولنه دَ ګډو دَ خپل مال دَ پاره او ښهرونه دَ خپلو ځامنو دَ پاره جوړ
کړو ١٧ او مونږ به په جلتئِ سره دَ بني‌اسرائیلو دَ وړاندِ تیار شُو تر ١٧
هغه چه دوې خپل ځاې ته ورسوُو او ځمونږ زامن به په قلادارو
ښهرونو کښ دَ مزکې دَ استوګنو له سبب پاتې شِي ١٨ مونږ به خپلو ١٨
کورونو ته نه جاروزو تر هغه چه هر یو بني‌اسرائیل خپل دفتر و
وینِي ١٩ مونږ به له هغو سره نه دفتریان کیږو دَ یُردین په پورې غاړه ١٩

کښې او سِوا له هغه نه څکه چه له يردين نه راپورِي نمرخاته ته خپل
۲۰ دِغنړ مو اخستلي دي ۲۰ نو دوي ته موسیٰ ووېل که تاسو دا کار وکړ که
۲۱ دَ خداوند دَ وړاندِ دَ جنګ دَپارَ تيار شولئِ ۲۱ او ټول تيار شوي له تاسو
نه دَ خداوند دَ وړاندِ له يردين نه پورِي وتل تر هغه چه خپل دُښمنان
۲۲ يُ له خپلي مخې نه وشړل ۲۲ او مزکه چه وړاندِ دَ خداوند دَه لاندِ شوله
او پس له هغه تاسو وجاروتلئِ نو تاسو به دَ خداوند له طرفه او دَ
اسرائيل له طرفه بيِ‌ګناه يئِ او دَ خداوند دَ وړاندِ به دا مزکه ستاسو
۲۳ دَپارَ دفتر شِي ۲۳ ولي که تاسو داسي کار و نه کړئِ نو ګوره تاسو
به خداوند ته ګناهګار شئِ او تاسو به پوه شئِ په خپلي ګناه هغه چه
۲۴ تاسو به بيامومئِ ۲۴ دَ ښانونو دَپارَ ښهرونه دَ زامنو دَپار او شپولونه
دَ خپلو ګډو دَپارَ جوړ کړئِ او څه چه ستاسو له خلو نه وتلي دِي وکړئِ
۲۵ ۲۵ نو بنيِ‌جادو او بنيِ روبينو له موسیٰ سره خبري وکړي و يُ ويل چه
۲۶ ستا مريونه به وکړي لکه چه څمونږ صاحب حکم کړي دي ۲۶ څمونږ زامن
او څمونږ ښځي او څمونږ څاروِي او ټول ډنګر څمونږ به دلته وِي دَ
۲۷ جَلعاد په ښهرونو کښ ۲۷ او ستا مريونه ټول تيار شوِي دَ لښکر دَپارَ
دَ خداوند دَ وړاندِ دَ جنګ دَپارَ به پوري وزِي لکه چه څمونږ صاحب
ويلي دِي
۲۸ ۲۸ نو موسیٰ دَ هغو دَپارَ حکم وکړ اَلِيعازار کوهين او يَشُوع څوي
۲۹ دَ نوّن او سردارانو دَ پلرونو دَ فرقو ته له بنيِ اسرائيلو نه ۲۹ او هغو
ته موسیٰ ووېل که چري له تاسو سره بنيِ‌جاد او بنيِ روبين ټول تيار
دَ جنګ دَپارَ وړاندِ دَ خداوند له يردين نه پوروتل نو هر کله چه هغه
مزکه چه ستاسو دَ وړاندِ ده لاندِ شوله نو مزکه دَ جَلعاد دوي له
۳۰ دفتر ورکړئِ ۳۰ ولي که له تاسو سره تيار شوِي پوري نه وزِي نو
۳۱ ستاسو په مينځ کښ دِ دفتر واخلِي دَ کنعان په مزکي کښ ۳۱ نو بنيِ‌جادو
او بنيِ روبينو ځواب ورکړ و يُ ويل چه هغه څه چه خداوند ويلي دِي

ستا له مریونو نه په هغه شان به وکړو ٣٢ مونږ به تیار دَ خداوند ٣٢
دَ وړاندِ دَ کِنعان مزکې ته پورې وزو ولې ملک څمونږ دفتر دِ دَ یردین
په دا پورې غاړه کښې شي ٣٣ نو موسیٰ هغو له بنيجاد او بني روبين ٣٣
اونیمې فرقې دَ مَنَسّي ځوی دَ یُوسف له بادشاهئ دَ سِیحُون بادشاه دَ
اموریانو او بادشاهي دَ عُوج بادشاه دَ باشان مزکه سره له ښهرونو ئې
سره له سرحدونو دَ ښهرونو مزکه چاپیره له هغو ورکړه
٣٤ نو بني جاد دِیبُون او عَطارُوث او عروعير جوړ کړل ٣٥ او ٣٤ ٣٥
عَطرُوث شُوفان او یَعزیر او یُوجَبیهاه ٣٦ او بیتِ نمراه او بیت هاران ٣٦
قلادار ښهرونه سره دَ ګډو له شپولونو ٣٧ او بني روبین حَشبُون او ٣٧
اَلعالي او قَریتام جوړ کړل ٣٨ او نبُو او بَعل مَعُون نومونه بدل شوي او ٣٨
سَبماه ئې جوړ کړل او ورئې بلل په نومونو سره نومونه دَ ښهرونو هغه
چه ئې جوړ کړي وُو ٣٩ او بني ماکیر ځوی دَ مَنَسِّي جَلعاد ته لاړل او ٣٩
ورئې نیو او اَموریان هغوی چه په کښې وُو وئې شړل ٤٠ نو موسیٰ جَلعاد ٤٠
ماکیر دَ مَنسِّي ځوی له ورکړه نو په کښې استوګن شه ٤١ او یائیر ځوی ٤١
دَ مَنَسِّي لاړ او دَ فصلونو مزکې ئې ونیولې او په حَوّوث یائیر ئې وبللې
٤٢ او نُوبَح لاړ او قنات او دَ هغه کلي ئې ونیول او په خپل نوم ٤٢
نُوبَح ئې وبلل +

## دري دیرشم باب

آ دا دِي کوچونه دَ بني اسرائیلو هغوی چه وتلي وُو دَ مصر له مزکې ١
نه له خپلو لښکرو سره دَ موسیٰ او دَ هارون دَ لاس لاندې ٢ او موسیٰ ٢
دَ دوی کوچونه موافق له سفرونو ئې ولیکل دَ خداوند دَ ویلو په شان
او دا دِي سفرونه موافق له کوچونو دَ دوی ٣ له رَعمسیس نه په رومبي ٣
میاشتې دَ فصح په صبا کښې کوچ ئې وکړ بني اسرائیل ووتل په
هسک لاس سره دَ ټولو مصریانو دَ سترګو دَ وړاندِ ٤ څکه چه ٤
مصریانو ښخول هغوی چه خداوند له هغو نه وژلي وو له ټولو وړنبو

پيدا شويو نه او خداوند دَ دوي په خدايانو قضا وکړله
٥ ٥ نو بنيِاسرائيلو له رَعْمسيس نه کوچ وکړ او په سکوت کښ ډيره
٦ شول ٦ بيا له سکوت نه ئي کوچ وکړ او په اِيثام کښ ډيره شول هغه چه دَ
٧ دَ بيابان په غاړي دي ٧ بيا له ايثام نه ئي کوچ وکړ او پيهحيروث ته وجاروتل
٨ هغه چه بَعَل صفُون ته مخامخ دَي او دَ مجدول دَ وړاندِ ډيره شول ٨ بيا دَ
پيهحيروث دَ وړاندِ نه ئي کوچ وکړ او دَ سيند په مينځ کښ پوري وتل بيابان
ته او دَ دريِ ورځو په لاريِ لاړل دَ ايثام په بيابان کښ او په مارَه کښ
٩ ډيره شول ٩ بيا ئي له مارَه نه کوچ وکړ او ايليم له راغلل او په ايليم
کښ دولس چيني دَ اوبو وي او اويا وني دَ کجُورو وي نو هلته ډيره
١٠ ١١ شول ١٠ بيا ئي له ايليم نه کوچ وکړ او دَ قلزم په سيند ډيره شول ١١ بيا
ئي دَ قلزم دَ سيند نه کوچ وکړ او سين په بيابان کښ ډيره شول
١٢ ١٢ بيا ئي دَ سين له بيابان نه کوچ وکړ او په دفقه کښ ډيره شول-
١٣ ١۴ ١٣ بيا ئي له دفقه نه کوچ وکړ او په الُوش کښ ډيره شول ١۴ بيا ئي له الُوش نه
کوچ وکړ او په رفيدِيم کښ ډيره شول او هلته دَقام دَپارَ اوبه نه وي چه
١٥ وڅښي ١٥ بيا ئي له رفيدِيم نه کوچ وکړ او دَ سينا په بيابان کښ ډيره
١٦ شول ١٦ بيا ئي دَ سِينا له بيابان نه کوچ وکړ او په قبروثِ هتّاواه
١٧ کښ ډيره شول ١٧ بيا ئي له قبروثِ هتّاواه نه کوچ وکړ او په حضيروث
١٨ کښ ډيره شول ١٨ بيا ئي له حضيروث نه کوچ وکړ او په رتماه کښ
١٩ ډيره شول ١٩ بيا ئي له رتماه نه کوچ وکړ او په رِمُونِ پارَض کښ ډيره
٢٠ شول ٢٠ بيا ئي له رِمُونِ پارَض نه کوچ وکړ او په لبناه کښ ډيره
٢١ شول ٢١ بيا ئي له لبناه نه کوچ وکړ او په رِساه کښ ډيره شول
٢٢ ٢٢ بيا ئي له رِساه نه کوچ وکړ او په قهيلاته کښ ډيره شول-
٢٣ ٢٣ بيا ئي له قهيلاته نه کوچ وکړ او دَ شافر په غره کښ ډيره شول
٢۴ ٢۴ بيا ئي دَ شافر له غره نه کوچ وکړ او په حرّاداه کښ ډيره شول-
٢٥ ٢٥ بيا ئي له حرّاداه نه کوچ وکړ او په مقهيلوث کښ ډيره شول

۲۶ بیا يې له مقهیلوث نه کوچ وکړ او په تاحَث کښې ډیره شول ۲۷ بیا ۲۶ ۲۷
يې له تاحَث نه کوچ وکړ او په تارَح کښې ډیره شول ۲۸ بیا يې له تارَح ۲۸
نه کوچ وکړ او په مِتقاه کښې ډیره شول ۲۹ بیا يې له مِتقاه نه کوچ ۲۹
وکړ او په حَشمُوناه کښې ډیره شول ۳۰ بیا يې له حشموناه نه کوچ وکړ ۳۰
او په مَسِیرُوث کښې ډیره شول ۳۱ بیا يې له مسیروث نه کوچ وکړ ۳۱
او په بني‌یَعقان کښې ډیره شول ۳۲ بیا يې له بني‌یعقان نه کوچ وکړ ۳۲
او په حورالجِدجاد کښې ډیره شول ۳۳ بیا يې له حورالجِدجاد نه کوچ ۳۳
وکړ او په یُطباته کښې ډیره شول ۳۴ بیا يې له یُطباته نه کوچ وکړ ۳۴
او په عِبرونه کښې ډیره شول ۳۵ بیا يې له عِبرونه نه کوچ وکړ او په ۳۵
عَصیُونِ جابر کښې ډیره شول ۳۶ بیا يې له عَصیونِ جابِر نه کوچ وکړ ۳۶
او دَ صِین په بیابان کښې چه قادِش دي ډیره شول ۳۷ بیا يې له قادِش ۳۷
نه کوچ وکړ او دَ هُور په غره کښې دَ ادوم دَ مزکي په ډډې کښې
ډیره شول

۳۸ نو هارون کوهین دَ هُور غره ته دَ خداوند دَ ویلو په شان ۳۸
وختو او هلته مړ شه په څلویښتم کال کښې دَ بني‌اسرائیلو دَ وتلو
دَ مصر له مزکي نه په پنځمي میاشتي کښې دَ میاشتي په وړومبۍ ورځي
کښې ۳۹ او هارون دَ سلو او درویشو او دري کالو وه په هغه وقت ۳۹
چه دَ هُور په غره کښې مړ شه ۴۰ او عَراد بادشاه کنعاني چه دَ کنعان ۴۰
په مزکي کښې په سُهیل طرف کښې استوګي وه دَ بني‌اسرائیلو له راتلو
نه يې واوریدل

۴۱ بیا يې دَ هُور له غره نه کوچ وکړ او په صَلموناه کښې ډیره ۴۱
شول ۴۲ بیا يې له صَلمُوناه نه کوچ وکړ او په فونون کښې ډیره شول ۴۲
۴۳ بیا يې له فونون نه کوچ وکړ او په اوبوث کښې ډیره شول ۴۴ بیا ۴۳ ۴۴
يې له اوبوث نه کوچ وکړ او په عَیي عِباریم کښې دَ مواب په سرحد
کښې ډیره شول ۴۵ بیا يې له عَییم نه کوچ وکړ او په دِیبون جاد کښې ۴۵

٤٦ ډیره شول ٤٦ بیا ئي له دِیبونِ جاد نه کوچ وکړ او په عَلمُونِ دِبلاتایماه
٤٧ کښې ډیره شول ٤٧ بیا ئي له عَلمُون دِبلاتایماه نه کوچ وکړ او دَ عِبارِیم
٤٨ په غرونو کښې نبُو ته مخامخ ډیره شول ٤٨ بیا ئي دَ عِبارِیم له غرونو نه
کوچ وکړ او دَ موآب په بیابانونو کښې دَ اَریحا په یردین ډیره شول -
٤٩ ٤٩ په یردین باندِ له بَیت یَشِیموث نه تر آبیلِ شَطِیمَ پوري دَ مواب
په بیابانونو کښې ډیره شول
٥٠ ٥٠ او خداوند له موسیٰ سره دَ مواب په بیابانونو کښې اَریحا ته
٥١ مخامخ په یردین باندِ خبري وکړي و ئي ویل ٥١ چه له بنيِ‌اسرائیلو سره
خبري وکړه او ورته ووایه چه تاسو پوري وتونکي شئِ له یردین نه دَ
٥٢ کِنعان مزکي ته ٥٢ نو له خپلي مخې نه ټول استوګي دَ مزکي وشړِئ او
دَ هغو ټولي څېرِي وتوکِئ او ټول قالِب کړي شوي بُتان ئي مات کړِئ
٥٣ او ټول لوړ ځایونه ئي خراب کړِئ ٥٣ مزکه ئي دفتر کړِئ او په کښې اوسئِ
٥٤ ځکه چه ما هغه مزکه تاسو له درکړي ده چه تاسو ئي دفتر کړِئ ٥٤ او
مزکه په پچي سره وویشئِ په شان دَ خپلخانو خپلو د ډیرو دَپارَ دفتر
ئي ډیر کړِئ او دَ لږو دَپارَ دفتر ئي لږ کړِئ هر ځاي چه پچه ئي وزي
نو هغه ځاي به دَ هغه دَپارَ شي به شان دَ فرقو دَ نیکونو خپلو
٥٥ وویشئِ ٥٥ او که تاسو استوږي دَ مزکي له خپلي مخې نه ونه شړئِ نو
داسي به وشي چه له هغو نه باقي پاتي شوي وي ستاسو په سترګو کښې
به غَشّي شي او ستاسو په اړخونو کښې به اَغزي شي او تاسو به تنګوي
٥٦ په مزکي باندِ هغه چه تاسو په کښې استوګی یئِ ٥٦ او داسي به وشي چه
زه به له تاسو سره وکړم لکه چه ما اراده کړي وه چه له هغو سره
به کوم +

## څلور دیرشم باب

١ ٢ ١ او موسیٰ سره خداوند خبري وکړي و ئي ویل ٢ بنيِ‌اسرائیلو ته حکم وکړه
او ورته ووایه چه تاسو داخل شئِ دَ کِنعان مزکي ته هغه دا مزکه

ده چه ستاسو دَپارَ به دفتر شِي مزكه دَ كِنعان ده دَ هغي له سرحدونو
سره ۳ دَ سُهيل طرف به ستاسو دَپارَ شِي دَ صِين له بيابان نه ۳
دَ اَدوم په طرف او سرحد دَ سُهيل به ستاسو دَپارَ شِي دَ مالگي
دَ درياب له طرف نه نمرخاته ته ۴ او ستاسو دَپارَ سرحد به دَ ۴
عَقرَبِيم دَ لوړي له سُهيل طرف نه راگرزيدلي وِي او صِين ته به
پوري وزِي او وتل به ئي دَ قادِش بَرنيع له سُهيل نه وِي او حَصرادار
ته به وزِي او عَصمُونه ته به پوري ووځي ۵ بيا به دَ سرحد له عَصمُونه ۵
نه وگرزِي دَ مصر خوړ ته او دَ هغه وتل به سِيند ته وِي ۶ او ۶
هر چه سرحد دَ نمرپرېواته دي نو لوي سِيند به ستاسو دَپارَ
سرحد وِي دا به ستاسو دَپارَ سرحد نمرپرېواته ته وِي ۷ او دا به ۷
ستاسو دَپارَ سرحد دَ قطب طرف وِي له لوئ سيند نه نښه کړئِ
دَ ځان دَپارَ دَ هُور تر غره پوري ۸ او دَ هور له غره نه دَحَمات ۸
تر مدخلَ پوري نښه کړئِ او وتل دَ سرحد به تر صدادا پوري وشي
۹ بيا به سرحد وزي زفرون ته او وتل به ئي حَصَرِ عينان ځنځه شِي ۹
دا به ستاسو دَپارَ سرحد دَ قُطب شِي ۱۰ او ځان له نښه کړئِ ۱۰
نمرپرېواته ته له حَصَرِ عِينان نه تر شُفامَ پوري ۱۱ او سرحد به راكوز ۱۱
شِي له شُفام نه رِبلاه ته عين نمرپرېواته ته بيا به سرحد راكوز شِي
او وبه جنگيږي دَ حَنرت دَ سِيند په طرف نمرپرېواته سره ۱۲ بيا به ۱۲
سرحد يردين ته راكوز شِي او وتل به ئي دَ مالگي درياب ځنځه وِي دا به
تاسو له مزكه وِي دَ هغي له سرحدونو سره او تر كير چاپېرَ
۱۳ نو موسیٰ بنی‌اسرائیلو ته حکم وکړ و ئي ويل چه دا هغه مزكه ۱۳
ده هغه چه په پچي سره ئي وېشئِ هغه چه خداوند حکم وکړ چه نهه
فرقو او نيمي له دي ورکړي شِي ۱۴ ځكه چه دَ بني‌روبين دَ فرقي په شان ۱۴
دَ کورونو دَ نيکونو خېلو او نيمي فرقي دَ مَنَسّي اخستي ده خپل دفتر
ئي اخستی دي ۱۵ دوه فرقو او نيمي فرقي خپل دفتر اخستي دي له ۱۵

يردن نه پورې غاړه اريحا ته مخامخ نمرخاته ته
١٦ ١٧ ١٦ او خداوند له موسیٰ سره خبرې وکړې و ئې ويل ١٧ چه دا
نومونه دي د هغو سړو هغه چه تاسو له مزکه ويشي اليعازار کوهين
١٨ او يشوع د نون ځوي ١٨ او يو سردار له هرې فرقې نه د مزکې ويش
١٩ له واخلئ ١٩ او دا نومونه د سړو دي د يهودا له فرقې نه کالب ځوي
٢٠ ٢١ د يفنه ٢٠ او د بني شمعون له فرقې نه شموئيل ځوي د عميهود ٢١ او د
٢٢ بنيامين له فرقې نه اليداد ځوي د کسلون ٢٢ او د بني دان له فرقې نه
٢٣ سردار بقي ځوي د يجلي ٢٣ او د بني يوسف له فرقې نه د بني منسي
٢٤ سردار حنيئيل ځوي د ايفود ٢٤ او له فرقې د بني افرايم نه سردار
٢٥ قموئيل ځوي د شفطان ٢٥ او د بني زبولن له فرقې نه سردار اليصافان
٢٦ ځوي د پرناخ ٢٦ او د بني يساکار له فرقې نه سردار پلطيئيل ځوي
٢٧ د عزان ٢٧ او د بني آشير له فرقې نه سردار اخيهود ځوي د شلومي
٢٨ ٢٩ ٢٨ او د بني نفتالي له فرقې نه سردار پدهئيل ځوي د عميهود ٢٩ دا
هغه دي چه خداوند ور ته حکم کړې وه چه د کنعان په مزکې کښې
بني اسرائيلو له ويش وکړئ ٭

## پنځه دېرشم باب

١ ١ بيا خداوند له موسیٰ سره د مواب په بيابانونو کښې په يردن اريحا
٢ ته مخامخ خبرې وکړې و ئې ويل ٢ چه بني اسرائيلو ته حکم وکړه چه
لاويانو له دې د خپل دفتر له ملک نه ښهرونه استوګنې له ورکړي او
٣ کيرچاپير د ښهرونو چارچاپيره ئې لاويانو له دې ورکړي ٣ نو ښهرونه
به دوي له د استوګنې د پاره شي او کيرچاپير به ئې د دوي څارويو
٤ له او د دوي مالونو له او د دوي ټولو ځناورو له شي ٤ او کير چاپير
د ښهرونو هغه چه تاسو به ئې لاويانو له ورکوئ د ښهر له قلا نه
٥ بهر طرف ته زر ګز چارچاپير د هغو ٥ نو بهر له ښهر نه د نمرخاته
طرف ته دوه زر ګز او سهيل طرف ته دوه زر ګز او د نمرپرېواته

طرف ته دوه زرګزه او قطب طرف ته دوه زرګزه کچ کړئِ او ښهر دِ
۶ په مینځ کښ وِي دا به دَ دوي دَپارَ ګیرچاپیر دَ ښهرونو وِي ۶ او هغه
ښهرونه چه تاسو به يې لاوِيانو له ورکوئِ شپږ دِ له هغو نه دَ پناه
ښهرونه وِي تاسو ورکړئِ چه خوني هغو ته تښتي او بي له هغو
۷ نه دوه او څلویښت ښهرونه ورکړئِ ۷ ټول ښهرونه هغه چه تاسو
به يې لاوِيانو له ورکوئِ اته او څلویښت ښهرونه دِي دَ هغو دَګیرچاپیر
۸ سره ۸ او هغه ښهرونه چه تاسو دَ بني‌اسرائیلو له دفتر نه ورکوئِ
له ډیر نه ډیر کړئِ او له لږ نه لږ کړئِ هر یو دِ دَخپل دفتر په شان
هغه چه يې دفتر کړي وِي له خپلو ښهرونو نه دِ لاوِيانو له ورکړي
۹ ۱۰ ۹ او خداوند له موسيٰ سره خبري وکړي و يې ویل ۱۰ چه له بني‌اسرائیلو
سره خبري وکړه او ورته ووايه چه تاسو پوري وزئِ له يردين نه دَ
۱۱ کِنعان مزکي ته ۱۱ نو خپلو څانونو له ښهرونه مقرّر کړئِ چه تاسو له
ښهرونه دَ پناه شِي چه هغو ته خوني تښتي هغه خوني چه څوک يې
۱۲ په خطا سره وژلي وِي ۱۲ نو تاسو له به دَ پناه ښهرونه شِي له قصاصي
نه چه خوني مړ نه شِي تر هغه پوري چه دَ جماعت دَ وړاندِ ودریږي
۱۳ دَ قضا دَپارَ ۱۳ او هغه ښهرونه چه تاسو به يې ورکوئِ شپږ ښهرونه
۱۴ به ستاسو دَپارَ دَ پناه وِي ۱۴ ښهرونه دري به له يردين نه راپوري ورکوئِ
او دري ښهرونه به دَ کِنعان په مزکي کښ ورکوئِ دَ پناه ښهرونه به وِي
۱۵ ۱۵ بني‌اسرائیلو دَپارَ او مسافر له او دَ هغو په مینځ کښ استوګني له دا
شپږ ښهرونه به دَ پناه دَپارَ شِي چه هغو ته وتښتي هر څوک چه په خطا
سره څوک ووژني

۱۶ ۱۶ که دَ اُسپني په وسلي يې وهلي وِي او هغه مړ شه نو هغه
۱۷ خوني دي ضرور خوني دِ ووژلي شِي ۱۷ او که دَ لاس په کاڼي يې ويشتلي
وِي له هغه نه چه ورسره مري او مړ شِي نو هغه خوني دي ضرور
۱۸ خوني دِ ووژلي شِي ۱۸ يا يې دَ لاس په وسلي له لرګي نه وهلي وِي له هغه

نه چه وژلي شي ورسره ومري نو هغه خوني دي خوني دِ ضرور ووژلي
شي ١٩ قِصاصي دَ خون دِ خوني ووژني هركله چه پرِ پيښ شي و دِ
ئې وژني ٢٠ او كه په كښ سرئې تيل وهي يا په پسوني سره ئې په څه ٢٠
ځيز وغورزوي او مر شي ٢١ يا په خپل لاس سره ئې ووهي په دښمنئ ٢١
سره او مر شي ځكه چه هغه خوني دي قِصاصي دَ خون دِ خوني
ووژني هركله چه پرِ پيښ شي ٢٢ ولي كه بي له دښمنئ نه ئې تيل ٢٢
وهلي وي يائې بي له پسوني په ده څه ځيز غورزولي وي ٢٣ ياڅه كاڼي ٢٣
له هغه نه چه ور سره مري بي له ليدلو نه پرِ وغورزوي او هغه
مر شي او هغه ئې دښمن نه وي او نه ئې دَ ضرر غوښتونكي وي ٢٤ نو ٢٤
جماعت دِ قضا وكړي دَ خوني په مينځ كښ او دَ قِصاصي دَ خون په مينځ
كښ دَدي قضا په شان ٢٥ او جماعت دِ خوني دَ قِصاصي دَ خون له ٢٥
لاس خلاص كړي او دَ پناه ښهر ته دِ ئې واستوي هغه چه ورته
تښتيدلي وه نو دَ لوي كوهين تر مركه پوري هغه چه په مُقدّس تيلو
سره مسح شوي وه هلته دِ اوسي ٢٦ ولي كه چري خوني دَ خپلي پناه ٢٦
دَ ښهر له حدونو نه ووت هغه چه دي ورته تښتيدلي وه ٢٧ او ٢٧
قِصاصي دَ خون دي بياموند دَده دَ پناه دَ ښهر له حدونو نه بهر
او قِصاصي دَ خون خوني ووژه نو خون به هغه نشته ٢٨ ځكه چه ٢٨
دَ خپلي پناه په ښهر كښ به دَ لوي كوهين تر مركه پوري اوسي او
پس دَ لوي كوهين له مرګ نه نو خوني به دَ خپل دفتر مزكي له ځي
٢٩ نو دا به تاسو له فرض حكم وي ستاسو تر پيړو پوري ستاسو ٢٩
په ټولو ځايونو كښ ٣٠ هرچا چه څوك ووژه نو دَ شاهدانو په خولي ٣٠
دِ خوني ووژلي شي او يو شاهد دِ شاهدي نه لي په چا باندِ
دَ مرګ دَپاره ٣١ او تاسو تاوان مه اخلئ دَ خوني دَ ځان چه ګناهكار ٣١
دَ مرګ وي بلكه هغه دِ ضرور ووژلي شي ٣٢ او تاسو تاوان مه اخلئ ٣٢
چه وتښتي دَ خپلي پناه ښهر ته او بيا راشي او استوګي شي په مزكي

کښې په خوا دَ کوهين له مرګ نه ٣٣ مزکه مه پليتوئ هغه چه تاسو ٣٣
په کښې يئِ ځکه چه وِينه مزکه پليتوِي او له مزکې نه کفاره نه کيږي
په سبب دَ وينې هغه چه په هغې کښې توي شوي وِي بې له وينې دَ
تويونکي نه ٣٤ او هغه مزکه چه تاسو په کښې استوګني يئِ سه پليتويِ ٣٤
هغه چه زه ئې په مينځ کښې استوګني يم ځکه چه زه يَهوَه يم دَ
بنيِ‌اسرائيلو په مينځ کښې استوګني يم ✣

## شپږ ديرشم باب

١ او مشران پلرونه دَ قبيلې دَ بنيِ‌جِلعاد ځوي دَ ماکير ځوي دَ ١
مَنَسّي له قبيلې نه دَ بنيِ‌يُوسف وړاندِ شول او دَ موسیٰ دَ وړاندِ
او دَ سردارانو دَ مشر دَ پلرونو دَ وړاندِ له بنيِ‌اسرائيلو نه خبري
ئې وکړي ٢ او و ئې ويل چه خداوند ځمونږ صاحب ته حکم وکړ چه ٢
مزکه په ويش سره په پچې بنيِ‌اسرائيلو له ورکړئِ او له خداوند نه
ځمونږ صاحب ته حکم وکړې شه چه دفتر ځمونږ دَ وړور صَلُحفاد
دِ دَ هغه لُوڼو له ورکړي ٣ نو که دوي دَ چا له زامنو دَ فرقو دَ ٣
بنيِ‌اسرائيلو ښځې شي نو دَ هغو دفتر به واخستې شي ځمونږ دَ پلرونو
له دفتر نه او زيات به کړې شي دَ هغې فرقې په دفتر چه دوي دَ
هغه شوي وِي نو ځمونږ دَ دفتر له پچې نه به واخستې شي ٤ او هرکله ٤
چه دَ بنيِ‌اسرائيلو يوبيل شي نو دَ دوي دفتر به زيات کړې شي په
دفتر دَ فرقې هغه چه دوي دَ هغه شوي وِي او ځمونږ دَ پلرونو دَ فرقې
له دفتر نه دَ دوي دفتر به واخستې شي
٥ نو موسیٰ بنيِ‌اسرائيلو ته حکم وکړ دَ خداوند دَ ويلو په شان ئې ٥
وويل چه دَ بنيِ‌يُوسف فرقې رښتيا وويل ٦ دا هغه دِي چه خداوند ٦
پرِ حکم کړي دي دَ صَلُحفاد له لُوڼو نه ويلي ئې دِي چه څوک چه
دَ دوي په سترګو کښې ښه وِي دَ هغه ښځې دِ شي ولې دَ دوي دَ
پلرونو دَ فرقې له قبيلې نه دِ دَ دوي ښځې شي ٧ نو دفتر دَ بنيِ‌اسرائيلو ٧

به له يوي فرقي نه بلي فرقي ته نه گرزي بلکه بنياسرائيل هر يو به له دفتر
۸ دَ فرقي دَ پلرونو خپلو سره پيوست شي ۸ او هره جلئ دَ بنياسرائيلو
له فرقو نه چه دفتر ميراث اخلي نو بنځه به شي دَ يو له قبيلي دَ
فرقي دَ خپل پلار چه هر يو بنياسرائيل ميراث دَ خپل پلار دفتر اخلي
۹ ۹ نو دفتر له يوي فرقي نه بلي فرقي ته به نه گرزي بلکه فرقي دَ
۱۰ بنياسرائيلو به هر يو له دفتر سره پيوست شي ۱۰ لکه چه خداوند موسیٰ
۱۱ ته حکم کړي وَه په هغه شان دَ صَلُحفاد لُونړو وکړل ۱۱ نو مَحلاه
او تِرصاه او حجلاه او مِلکاه او نوعاه دَ صَلُحفاد لُونړه دَ خپلو ترونو
۱۲ دَ زامنو بنځي شولي ۱۲ له قبيلي دَ بنيمَنَشي ځوي دَ يوسف بنځي شولي
۱۳ دَ هغو دفتر دَ خپل پلار دَ قبيلي په فرقي کښ پاتي شه ۱۳ دا دي
هغه حکمونه او شريعتونه چه په هغو سره خداوند بنياسرائيلو ته
حکم کړي وَه دَ موسیٰ له لاس دَ مواب په بيابانونو کښ په يردين
باندِ اَريحا ته مخامخ ***

# استثنا

## یعني پنځم کتاب دَ حضرت موسیٰ

## اوّل باب

۱ آ دا هغه خبري دِي چه ټولو بنِي اسرائیلو ته موسیٰ له اَردَنَ نه په دي خوا
په بیابان کښ په صحراکښ چه قُلزم ته مخامخ دي دَ فاران او توفل
۲ او لابان او حَضِیرُوت او دِي ذَهَب په مینځ کښ کړي وي ۲ دَ سَعِیر دَ غره
په لاري له حوریب نه تر قادش برنیعَ پوري دَ یوُلسو ورځو منزل دي
۳ ۳ نو په ورښتِي ورځي دَ یولسمی میاشتي دَ څلویښتم کالَ موسیٰ هغه
ټول څه چه خداوند ورته حکم کړي وه بنِي اسرائیلو ته ئِي وویل -
۴ ۴ پس له هغي نه چه دَ اموریانو بادشاه سِیحُون دَ حِشبون اوسیدونکي
او دَ باشان بادشاه عُوج دَ عشتاروت اوسیدونکي په اذرعي کښ
۵ ئِي وژلي وُو ۵ له اَردَنَ نه په دي خوا دَ مُوآب په مزکي باندِ موسیٰ
۶ په بیابان دَ دي شریعت شروع وکړه و ئِي ویل ۶ چه خداوند الله ځمونږ
په حوریب کښ مونږ ته خبري وکړي و ئِي ویل چه ستاسو استوګه په
۷ دي غره کښ ډیره وشوله ۷ وګرزئِ او روان شئِ او لاړ شئِ دَ اُموریانو
غره ته او په ټول هغه کښ چه ورته نزدي اوسي په میدان او په
غره په بیابان او سُهیل ته او دَ سیند په غاړي دَ کنعانیانو مزکي ته
۸ او تر لبنان پوري او لوي سیند ته چه دَ فرات سیند دي ۸ وګوره چه
ما ستاسو دَ وړاندِ مزکه درکړله ور داخل شئِ او خپل دفتر ئِي کړئِ هغه
مزکه چه خداوند ستاسو له نیکونو ابراهام او اسحٰق او یعقوب سره قسم
۹ وکړ چه هغو له او پس له هغو دَ هغو اولاد له به ئِي ورکړي ۹ او په
ویلو مِ په هغه وقت درته وویل چه زه یواځي ستاسو دَ بار اخیستلو
۱۰ توان نه لرم ۱۰ خداوند الله ستاسو تاسو ډیر کړي بِئِ او نن ورځ دا دي

۱۱ دَ آسمان دَ ستوريو په شُمير تاسو ډير شوي يئِ ۱۱ خداوند الله ستاسو
دَ پلار نيکونو دِ زر څله تاسو زيات کړي او لکه چه تاسو ته ئي
۱۲ ويلي دِي برکت دِ درکړي ۱۲ زه يواځي ستاسو دَ سختئِ او دَ بار او دَ
۱۳ دُښمنئِ څه رنګي زغمم وکړم ۱۳ تاسو دَ ځان دَپارَ هوښياران او عاقلان
سړي چه ستاسو په قامونو کښ مشهور وِي وانړوئِ چه زه ئي
۱۴ ستاسو سرداران کړم ۱۴ نو تاسو ما له ځواب راکړ چه هر څه حکم چه
۱۵ تا کړي دي منل ئي ښه دِي ۱۵ نو هوښياران او مشهور سړي ستاسو
دَ قامونو مشران مِ واخستل او ستاسو په سردارئِ مِ مقرر کړل
چه سرداران دَ زرګونو او سرداران دَ سلګونو او سرداران دَ پنځوسو
۱۶ او سرداران دَ لسو او ستاسو دَ قامونو منصبداران وِي ۱۶ او په
هغه وقت مِ ستاسو قاضيانو ته حکم وکړ وَ مِ ويل چه مقدّمه
دَ خپلو ورونړو آورئِ او په مينځ دَ سړي او دَ هغه دَ ورور او دَ
۱۷ مسافر چه ورسره وِي په انصاف سره حکم کوئِ ۱۷ او په حکم کولو کښ
طرفداري مه کوئِ دَ کشرانو دَ مشرانو په شان آورئِ او له سړي نه
مه ويرېږئِ ځکه چه حکم دَ الله دَي او هغه مقدّمه چه تاسو ته ګرانه
۱۸ ښکاريږي ما له ئي را وليږئِ چه وائي ورم ۱۸ او ما تاسو ته حکم کړي دَي
۱۹ چه په هغه وقت هر کار چه مناسب وِي وئي کړئِ ۱۹ نو له حوريب نه
روان شوئ له هغه ټول لوئي او هيبتناک بيابان نه چه دَ اموريانو
دَ غرِه په لور تاسو وليد روان شولُو لکه خداوند الله ځمونږ چه مونږ
۲۰ ته حکم کړي وه او قادِيش برنيع ته ورسيدلو ۲۰ نو تاسو ته مِ وويل
چه دَ اموريانو غرِه ته چه خداوند الله ځمونږ ئي مونږ له راکوي رسيدلي
۲۱ يئِ ۲۱ وګوره چه خداوند الله ستا تا له مزکه درکړي ده لاړ شه لکه چه
خداوند الله چه ستا پلار نيکونو ته ويلي دِي دفتر ئي کړه ويريدونکي او
۲۲ نرهيدونکي مه اوسه ۲۲ نو تاسو ټول ما له راغلئِ او و مو ويل چه يو
څو تنه له ځان نه وړاندِ واستوو چه ځمونږ دَپارَ جاسوسي وکړي دَ

مُلک او سونږ خبر کړي له هغي لاري نه چه مونږ به پرِ ځو او له هغو
ښهرونو نه چه به ورځو ٢٣ او دا خبره ما ته غوره ښکاره شوه او له ٢٣
هري قبيلي نه يو سړي دولس تنه مِ له تاسو نه وانخول ٢٤ نو وګرزيدل ٢٤
او په غره وختل او دَ اِشکول دري ته ورسيدل جاسوسِي ئي وکړله -
٢٥ او دَ هغي مزکي له ميوي نه ئي په لاسونو کښ مونږ له راوړله او ٢٥
مونږ ئي خبر کړو و ئي ويل چه هغه مزکه چه خداوند الله مونږ له راکړي
دَه ښه ده ٢٦ ولي تاسي راضي نه شولئِ چه وخيژئِ بلکه دَ خداوند الله ٢٦
خپل له خولي نه سرکښ شولئِ ٢٧ او په خپلو خيمو کښ ګيله مند شولئِ ٢٧
و مو ويل چه خداوند له مونږ سره دُښمني کړي دَه له دي سبب ئي مونږ
دَ مصر له زمکي نه رايستلي يو تر هغه پوري چه دَ اُموريانو په لاسونو
کښ مو ګرفتار کړي ٢٨ مونږ چرته وخيژُو ځمونږ وروڼو خو ځمونږ زړونه ٢٨
وِيلِي کړل چه و ئي ويل چه هغه خلق له مونږ نه لوړ او اوږده دِي
ښهرونه ئي لوئي ديوالونه ئي تر آسمانَ پوري دِي او مونږ بنيِ عُناق هلته
وليدل ٢٩ نو ما تاسو ته وويل چه مه ويرېږئِ او مه ترهيږئِ ٣٠ خداوند ٢٩ ٣٠
الله ستاسو چه ستاسو په مخ کښ روان دَي ستاسو دَپارَ به جنګ
وکړي دَ هغو ټولو کارونو په شان چه ستاسو دَپارَ ئي ستاسو دَ سترګو
دَ وړاند په مصر کښ وکړل ٣١ او هلته په بيابان کښ دِ هم وليدل ٣١
چه خداوند الله ستا څه رنګ ته واخستلي لکه چه سړي خپل ځوي اخلي
په هغي ټولي لاري چه پرِ راغلئِ تر هغه پوري چه دي ځاي ته ورسيدلئِ
٣٢ نو هاله هم تاسو په دي خبري په خپل خداوند الله ايمان را نه وړ ٣٢
٣٣ چه په لاري ستاسو دَ وړاندِ ته چه ستاسو دَپارَ دَ ډيره کيدلو دَ ٣٣
ځاي تپوس وکړي دَ شپي په اور کښ چه ستاسو دَپارَ لاره روښانه
کړي چه پرِ ځئِ او دَ ورځي په وريځي کښ ٣٤ او خداوند ستاسو خبري ٣٤
واوريدلي نو په قهر شه او قسم ئي وخوړ و ئي ويل ٣٥ دَدي خرابي ٣٥
پيړئِ له خلقو نه يو هم دَ هغي ښي مزکي هغه چه ما قسم کړي وه ستاسو

٣٦ له پلار نيکونو سره چه ور به ئي کړم و به نه وينِي ٣٦ بي له کالبَ دَ
خوي يَفُنَه نه هغه به ئي وويني او زه دا مزکه چه ني پړ قدم ايښي دي هغه
له او دَ هغه اولاد له به ئي ورکړم ځکه چه هغه پُوره تابعدارِي دَ خداوند
٣٧ وکړله ٣٧ او ستاسو له سببَ خداوند په ما هم په قهر شه او وئي ويل
٣٨ او ته به هم پکښ داخل نه شي ٣٨ ولي دَ نون ځوي يَشُوع چه ستا په خدمت
کښ ولاړ دي په هغي کښ به داخل شي مضبوط ئي کړه ځکه چه هغه به
٣٩ ئي دَ بنِي اسرائيلو دفتر کړِي ٣٩ او ستاسو ځامن چه تاسو وويل چه ښکار
به شي او ستاسو هلکان چه په هغي ورځي پئِ دَ ښه بد بيلتُون کولي
نه شه ور داخل به شِي او زه به ئي هغو ته وبخښم او هغوي به ئي دفتريان
٤٠ شِي ٤٠ او تاسو په بيرته وګرزئِ او دَ قلزم دَ سيند په لاري بيابان ته
کوچ وکړئِ
٤١ ٤١ نو تاسو ما له ځواب راکړ وموويل چه موږ دَ خداوند ګناه کړي دَه
نو موږ برابر لکه چه خداوند الله خموږ حکم کړي دَي و به خيژُو او جنګ
به وکړُو نو تاسو ټولو ملا وتړلي او آسانه مو وګڼړله چه په غره وخيژئِ
٤٢ ٤٢ نو خداوند ما ته وويل چه دوي ته ووايه چه پاس مه خيژئِ او مه
جنګ کوئِ ځکه چه زه ستاسو په مينځ کښ نه يمِ هسې نه چه تاسو
٤٣ دَ خپلو دُښمنانو دَ وړاندِ مات شئِ ٤٣ نو ما تاسو ته وويل ولي تاسو
وانه وريدل بلکه دَ خداوند له حکم نه مو سرکښِي وکړله او په شوخئِ سره
٤٤ په غره وختلئِ ٤٤ نو اُموريان چه په هغه کښ اوسيدل در سره مخامخ
شول او دَ مچو په شان ئي په مخه واخستلئِ او په شَعِيرُ کښ ترحُرمي
٤٥ پوري ئي ووژللئِ ٤٥ نو تاسو را وجاروتلئِ او دَ خداوند دَ وړاندِ مو وژړل
٤٦ ولي يَهوَه ستاسو آواز وانه وريد نه ئي تاسو ته غوږ ونيو ٤٦ نو تاسو ډيري ورځي
په قادِيش کښ پاتي شولئِ دَ هغو ورځو په شير چه هلته اوسيدلئِ +

## دويم باب

١ ١ نو موږ راوګرزيدلوُ او روان شولو بيابان ته دَ قلزم دَ سيند په لاري

لکه چه خداوند ما ته ویلي وُو او تر ډیرو ورځو موږ دَ شعِیر له غره نه
۲ ۳ گیرچاپیره گرزیدلُو ۲ نو خداوند را سره په خبرو شه و ئي ویل ۳ چه تاسو له
۴ دي غرهِ نه گیر چاپیر ډیر وگرزیدلئِ دَ قطب په طرف را وگرزئِ ۴ او
ته هغه قام ته حکم وکړه او ووایه چه ستاسو تیریدل به دَ خپلو ورونړو
بنِي عیسو په سرحد وشِي چه په شعِیر کښِ اوسِي او هغوي به له تاسو
۵ نه په ویره شِي نو بیدار اوسئِ ۵ او هغوي مه چیړِي ځکه چه زه به دَ
هغو له مزکي نه په قدر دَ یو قدم هم در نه کړم چه ما دَ شعِیر غر دَ
۶ بنِي عیسو دفتر کړي دي ۶ تاسو خوراک له هغو نه په بیه اخلئِ چه تاسو
۷ ئي وخورئِ او اوبه په بیه پیرئِ چه تاسو ئي وڅښئِ ۷ چه ستا خداوند الله
ستا دَ لاس په ټولو کارونو کښِ تا له برکت درکړي دَي هغه په دي لوي
بیابان کښِ ستا تلل پیژنِي له څلویښتو کالو نه ستا خداوند الله له تا سره دي
۸ دَ هیڅ څیز کمي دِ ونه شه ۸ نو هر کله چه موږ دَ خپلو ورونړو بنِي عِیسو
له مخې نه چه په شعِیر کښِ اوسیده دَ میدان په لاري له ایلات او
عیصُونِ جابر نه تیر شوي لاړلُو نو موږ بیا را وگرزیدلو او دَ مواب دَ بیابان
۹ په لاري راغلُو ۹ نو خداوند ما ته وویل چه موابیان مه آزاروه او مه
ورسره په جنگ کښِ مقابله کوه چه دَ هغو له مزکی نه به تا له هیڅ دفتر
۱۰ در نه کړم ځکه چه ما بنِي لُوط ته عار په دفتر کښِ ورکړي دي ۱۰ اهلته
وراندِ اِیمِیم اوسیدل هغه لوي او ډیر لوړ قام دَ عُناقیانو په شان
۱۱ وه ۱۱ او دَ عُناقیانو په شان هغوي هم رُفائِیان شمارلي شول ولي مُوآبیانو
۱۲ به ورته اِیمِیم ویل ۱۲ خو وراندِ په شعیر کښِ حُوریان اوسیدل او
هر کله چه بنِي عِیسو هغوي له ځان نه وراندِ ورک کړِي وُو دَ هغو دفتر
ئي واخست او دَ هغو په ځاي ووسیدل لکه چه بنِي اسرائیلو دَ خپل دفتر
۱۳ په مزکي کښِ چه خداوند هغوي له ورکړي وَه وکړل ۱۳ اوس پاځئِ او دَ زَرْد
۱۴ له خوړ نه پوري وزئِ نو موږ دَ زَرْد له خوړ نه پوري وتلو ۱۴ او له
هغه وقت نه چه موږ له قادِش بَرنیع نه روان شوی وُو تر هغه چه دَ

زَرْدْ له خوړ نه تیر شولو اته دیرش کالونه وُو تر دي پوري چه دَ
جنګیالو خلقو ټولي پیړئ دَ لښکر له مینځ نه لکه چه خداوند په قسم
١٥ سره ورته ویلي وُو فنا شولي ١٥ او په یقین سره لاس دَ خداوند له
هغو نه مخالف وه چه دوي تار پتار کړي تر هغه پوري چه ئې له لښکر
١٦ نه فنا کړي ١٦ نو داسي وشول چه هر کله چه ټول جنګیالي سړي
١٧ مړه شول او له تمام نه فنا شول ١٧ نو خداوند له ما سره په وینا شه
١٨ وئې ویل ١٨ نن تا له له عار نه چه سرحد دَ موآب دي تیریدل دي-
١٩ ١٩ او هر کله چه ته بني عَمُونو ته مخامخ ورسیږي نو هغوي مه آزاروه
او مه ئې چیړه څکه چه زه به دَ بني عمونو له مزکي نه تا له دفتر در نه
٢٠ کړم چه هغه ما دَ بني لُوط په دفتر کښ ورکړي ده ٢٠ هغه هم دَ
رفائیانو مزکه شمارلي شوه پخوا هلته رفائیان اوسیدل او عمونیانو
٢١ ورته زمزومي ویل ٢١ هغه دَ عناقیانو په شان لوي او ډیر او لوړ قدي
تام وه ولي خداوند هغوي دَ هغو دَ وړاندِ هلاک کړل نو هغوي دَ هغو
٢٢ دفتر واخست او دَ هغو په ځاي ووسیدل ٢٢ لکه چه هغه بني عیسو
سره وکړل چه په شَعِیر کښ اوسیدل چه حوریان ئې دَ هغو دَ وړاندِ
هلاک کړل نو هغوي دَ هغو دفتر واخست او دَ هغو په ځاي تر اوسَ
٢٣ پوري اوسیدلي دي ٢٣ او عُویان چه په حدِ سَرِیم کښ تر عزا پوري اوسیدل
کَفتُوریانو چه له کَفتور نه راوتلي وُو هلاک کړل او دَ هغو په ځاي و
٢٤ وسیدل ٢٤ نو تاسو پاڅئ کوچ وکړئ دَ اَرنُون له خوړ نه پوري غاړه
شئ وګوره ما سَیحُون اَمُوري بادشاه دَ حَشبُون سره دَ هغه دَ مزکي ستا
په لاس کښ درکړي دي دَ هغه په دفتر اخستلو شروع وکړه او ورسره
٢٥ جنګ وکړه ٢٥ له نننئ ورځي نه زه به ستا ویره او هیبت دَ ټولو قامونو
دَ مخونو دَ وړاندِ شروع کړم چه ټول لاندِ دَ آسمان دي هغوي به ستا
خبري اوري او لړزیږي به او ستا دَ وړاندِ به بیقراره شي.
٢٦ ٢٦ نو ما دَ قَدِیمُوت له صحرا نه دَ حَشبُون بادشاه سیحون ته ایلچیان

ولیږل چه دَ صلح خبر ورکړي ووائي ۲۷ چه ستا په مزکي کښې تیریږم ۲۷
په لاري لاريْ به ځم بنِي طرف او کِینړه طرف ته به نه جاروزم ۲۸ په ۲۸
روپو سره خوراک په ما خرڅويِ چه وئي خورم او اوبه په روپو راکويِ چه
وئي څښم فقط په خپلو پښو به ځم ۲۹ لکه چه بني عِیسو له ما سره کار ۲۹
وکړ چه په شعیر کښې اوسِي او مُوآبیانو چه په عار کښې اوسِي تر هغه
چه زه تیر شم له اَرْدَنَ نه هغي مزکي ته چه خداوند الله څموږ ئي موږ
له راکوي ۳۰ ولي دَ حَشْبُون بادشاه سَیحُون ونه غوښتله چه موږ پریږدِي ۳۰
چه تیر شو ځکه چه خداوند الله ستا دَ هغه روح سخت کړ او دَ هغه
زړه ئي سرکښ کړ چه ستا په لاس کښې ئي درکړي لکه چه نن دي ۳۱ او ۳۱
ما ته خداوند ووئیل وګوره ما سَیحُون او دَ هغه مزکه تا له درکول شروع
کړه ته ئي په دفترکولو شروع وکړه تر هغه چه دَ هغه دَ مزکي دفتري شي
۳۲ نو سَیحُون څموږ مخي ته ووت هغه او ټول قام ئي یاهَص ته دَ جنګ ۳۲
دَ پارَه ۳۳ نو خداوند الله څموږ هغه موږ ته وسپاره نو موږ هغه او دَ ۳۳
هغه ټول ځامن او قام ئي ووژلل ۳۴ او هم په هغه وقت دَ هغه ټول ۳۴
ښهرونه موږ واخستل او دَ ټولو ښهرونو نر او ښځي او هلکان مو
هلاک کړل او هیڅوک مو باقي پري نه ښودل ۳۵ ولي څاروي چه مو دَ ۳۵
ځان دَ پارَه لوټ کړل او مال دَ لُوټ چه موږ په ښهرونو کښې واخستل
۳۶ له عرَوعِیر نه چه دَ اَرْنُون دَ خوړ په غاړي دي او له ښهر نه چه ۳۶
دَ خوړ په مېنځ کښې دي تر جلعاده پوري داسي هیڅ ښهر نه وه چه دَ
هغه نیول په موږ ګران وُو څموږ خداوند الله ټول څموږ په اختیار کښې
کړل ۳۷ ولي دَ بنِي عَمون په مزکي او دَ یبوق دَ خوړ څنِ څنِ ځایونه او دَ ۳۷
غرونو ښهرونه چه څموږ خداوند الله منع کړي وو ورته نژدي نه شولُو +

## دریم باب

۱ نو موږ وګرزېدلُو او دَ باشان په لاري وختلُو او عوج دَ باشان بادشاه ۱
په اذرعِي کښې هغه او دَ هغه ټول قام څموږ مخي له راووتل چه له

۲ مونږ سره جنګ وکړي ۲ نو خداوند ما ته وويل له هغه نه مه ويريږه چه
زه به هغه او دَ هغهٔ ټول قام سره له مزکي ئي ستا په لاس کښ درکړم
نو ورسره جنګ وکړه لکه چه تا دَ اموريانو له بادشاه سيحون سره
۳ چه په حَشبُون کښ اوسيده وکړه ۳ نو خموږ خداوند الله دَ باشان
بادشاه عوج هم سره له قام ئي خموږ په لاس کښ راکړل نو مونږ
۴ داسي ووهل چه يو تن باقي پاتي نه شه ۴ او هم په هغه وقت دَ
هغه ټول ښهرونه مونږ واخستل هيڅ کلي نه وه چه مونږ تر اخستي
نه وه شپيته ښهرونه دَ اَرجُوب ټول ملک په باشان کښ دَ عوج
۵ بادشاهت ۵ دا ټول ښهرونه په لوړو ديوالونو او وروونو او ارمونو سره
۶ محکم وُو بي له دي نورو ښهرونه دَ صحرا ډير ۶ نو مونږ هلاک کړل لکه
چه مونږ کار کړي وه دَ حَشبُون بادشاه سيحون سره ټول ښهرونه نر
۷ او ښځي او هلکان ئي هلاک شوي وُو ۷ ولي ټول خاروي او دَ ښهرونو
۸ مال مونږ دَ ځان دپارَ لوټ کړه ۸ او مونږ په هغه وقت دَ اُموريانو له
دوارو بادشاهانو نه دَ يَرْدن راپوري غاړه مزکه دَ اَرنُون له خوړنه دَ
۹ حرمون ترغره واخستله ۹ او صيدانيان حرمون سريون وائي او اُموريان
۱۰ ورته سنير وائي ۱۰ دَ ميدان ټول ښهرونه او ټول جلعاد او ټول باشان
تر سَلخه پوري او تر اذرعي پوري چه په باشان دَ عوج دَ بادشاهت ښهرونه
۱۱ دي ۱۱ ځکه چه دَ رُفاياانو په نسل کښ فقط دَ باشان بادشاه عوج
پاتي شوي وه او ګوره دَ هغه پالنګ دَ اُسپني پالنګ وه هغه دَ بني‌عمونو
په رَبه کښ نه دي څه؟ اوږدوالي ئي نهه لاسَ دَ سړي په لاس سره
۱۲ او پلن څلور لاسَ ۱۲ او مونږ دا مزکه هم په هغه وقت په خپل اختيار
کښ کړله له عَروعير نه چه دَ اَرنُون په خوړ باندِ دي او نيم غر دَ جلعاد
۱۳ او دَ هغه ښهرونه ما دا راوبينيانو او جاديانو ته وبخښله ۱۳ او باقي
پاتي شوي دَ جلعاد او ټول باشان چه دَ عوج بادشاهت وه دَ منَسّي
نيم قام له مِ ورکړِ دَ اَرجُوب ټول ملک له ټول باشان سره چه دَ رُفائيانو

مزکه ویلي شوه ۱۴ یائر دَ منسّي خوي دَ ارجوب ټول ملک دَ جسوریانو ۱۴
او دَ معکاتیانو تر سرحدَ پوري واخست او هغه په خپل نوم باشان
حووث یائیر کېښود تر نن ورځي پوري ۱۵ او جلعاد مِ ماکیر له ورکړ ۱۶ او ۱۵ ۱۶
له جلعاد نه دَ ارنون ترخوړَ مینځ دَ خوړ دَ یبوق ترخوړ پوري چه دَ
بني‌عمونو سرحد دي ما رؤبینیانو او جدیانو له ورکړ ۱۷ او میدان او اُردن ۱۷
دَ کنرت له اطرافو نه دَ میدان تر سینده پوري یعني دَ دریاي شوره
پوري چه دَ پسګا دَ لمن لاندِ نمرخاته دي ما ورکړ

۱۸ او ما په هغه وقت تاسو ته حکم وکړ و مِ ویل چه ستاسو ۱۸
خداوند الله تاسو دَ دي مزکي دفتریان کړيِ تاسو دَ خپلو ورونړو بني‌اسرائیلو
دَ وړاندِ ټول وسلي وتړلي هر قدر چه دَ جنګ لایق وِي پوري غاړه شيِ۔
۱۹ لیکن ستاسو ښځي او ستاسو زامن او ستاسو څارويِ ستاسو په ۱۹
ښهرونو کښ چه ما تاسو له درکړي دِي پاتي دِ وِي ځکه چه زه پوهیږم
چه ستاسو څارويِ ډیر دِي ۲۰ تر هغه پوري چه خداوند ستاسو ورونړو ۲۰
له آرام ورکړيِ لله چه تاسو له ئي درکړ چه هغوي هم دَ هغي مزکي چه
خداوند الله ستاسو له یردَن پوري غاړه هغوي له ورکويِ دفتریان شيِ
نو هر یو سړي خپل دفتر ته چه ما درکړي دي را وبه ګرزيِ ۲۱ او په ۲۱
هغه ما یشوع ته حکم وکړ و مِ ویل چه تا په خپلو سترګو ولیدل هر
څه چه ستا خداوند الله له دي دوارو بادشاهانو سره وکړل له دي بادشهو
سره هرچرته چه ته تیریږي خداوند به هم په دي شان وکړيِ ۲۲ تاسو ۲۲
له هغو نه مه ویریږيِ ځکه چه ستاسو خداوند الله ستاسو له لوریه
به پخپله جنګیږي

۲۳ نو ما په هغه وقت خداوند ته زاريِ وکړه و مِ ویل ۲۴ اي یهوَه ۲۳ ۲۴
الله تا خپله لويِ او خپل قوّت دَ متو دِ خپل مریِي ته ښودل شروع کړل
ځکه چه په آسمان یا په مزکي کوم یو الله دي چه ستا دَ کارونو په شان
یا ستا دَ طاقت په خیر کار وکړي شيِ ۲۵ زه ستا منّت کوم ما پریږده چه ۲۵

پوري غاړه لاړ شم او هغه ښه مزکه چه له اَردن نه پوري غاړه ده
٢٦ وګورم هغه ښه غر او لبنان ٢٦ ليکن ستاسو له سبب نه خداوند راته
په قهر شه او خما ئي وا نه وريده لا زباتي خداوند ما ته وويل چه دا
٢٧ قدر ستا دپاره پوره دِي په دي کار کښ نور راته څه مه وايه ٢٧ دَ
پسګا دَ غر سر ته وخيژه او نمر پريواته او قطب او سُهيل او نمرخاته
تهِ خپلي سترګي پورته کړه او په خپلو سترګو وګوره ليکن ته به له يرَدَن نه
٢٨ پوري غاړه لاړ نه شي ٢٨ ليکن يشوع ته حکم وکړه او هغه مضبوط کړه
او زړه ور ئي کړه چه هغه به دَ خلقو په مخ کښ مخ کښ پوري غاړه
٢٩ لاړ شِي او هغوي به دفتريان کړِي دَ هغي مزکي چه ته به ئي ګوري ٢٩ نو
مونږ بيتاَلپَعُور ته مخامخ په خوړ کښ اِيسار شولُو

# څلورم باب

١ ١ نو اوس اي اسرائيل هغه شريعتونه او حکمونه چه زه ئي تاسو ته ښيم
واورئِ چه پرِ عمل وکړئِ چه تاسو ژوندِي پاتي شئِ او به هغي مزکي
کښ چه ئي ستاسو دَ پلار نيکونو خداوند الله تاسو له درکوِي ورننوځئ
٢ او دفتريان ئي شئِ ٢ تاسو به دي وينا کښ چه زه ئي تاسو ته وايم هيڅ
مه زياتوئِ او مه څه ترِ کموئِ چه تاسو دَ خپل خداوند الله حکمونه چه زه
٣ ئي تاسو ته وايم وساتئِ ٣ هر څه چه خداوند دَ بَعَل پَعُور له سببَ وکړل
هغه تاسو په خپلو سترګو ليدلِي دِي چه هغه ټول څوک چه بَعَل پعَور
٤ پسي تلونکي دِي ستاسو له منځ نه ورک کړل ٤ ولي تاسو چه له خداوند
الله خپل سره پيوست شولئِ نو له تاسو نه هر يو تر ننِ ورځي پوري ژوندي
٥ دي ٥ وګورئِ ما شريعتونه او حکمونه څه رنګه چه خما خداوند الله ما ته
حکم کړي وه تاسو ته م وښيل چه تاسو پرِ عمل وکړئِ په هغي مزکي کښ
٦ چه به لاړ شئِ او دفتر به ئي کړئِ ٦ نو هغه وساتئِ او پرِ عمل وکړئِ څکه
دَ قامونو په نظر کښ ستاسو هم دغه هوښيارتيا او تميزدي چه دا ټول
شريعتونه واورِي نو به وائِي چه بي شکَ دا لوي قام هوښيار او تميز لرونکي

دي ۷ ځکه چه داسي لوئ قام کوم یو دَی چه ور ته الله داسي نزدي وِي ۷
لکه چه څمونږ خداوند الله مونږ ته نزدي دَي دَ ټولو څیزونو په باب
کښِ چه مونږ ترِ غواړو ۸ او کوم یو داسي لوي قام دَي چه شریعتونه او ۸
حکمونه ئِ داسي رښتیا وِي لکه چه دا ټول شریعت دي چه زه ئِ نن تاسو
له درکوم ۹ فقط ته بیدار اوسه اوخپل ځان ښه وساته هسي نه وِي ۹
چه هغه کارونه چه ستا سترګو لیدلي دي ته ئ هېر کړي او هسي نه وِي
چه ټولي ورځي دَ ژوندون خپلي دِ له زړه نه وتوکلي شِي اوخپلو زامنو
نمسو ته ئِ وښیه ۱۰ هغه ورځ چه ته خپل خداوند الله ته مخامخ په حوریب ۱۰
کښِ ودریدلي اوخداوند ما ته وویل چه قام ما له ټول کړه چه زه به
خپل حکم هغو ته اوروم چه هغوي ئِ زده کړي چه له ما نه وېرېږي ټول
عمر څومره چه هغوي په مزکي ژوندي وِي اوچه خپلو ځامنو ته ئِ وښيئِ
۱۱ نو تاسو نزدي راغلئِ او دَ هغه غره دَ لاندِ ودریدلئِ او هغه غر دَ ۱۱
آسمان تر مینځ پوري له تیارو او دریځو او تورتمونو سره په اور سیزلي شه
۱۲ او خداوند دَ اور له مینځ نه له تاسو سره خبري وکړي تاسو دَ خبرو ۱۲
آواز واورید ولي څیره مو و نه لیدله فقط آواز ۱۳ او هغه خپل ۱۳
عهد تاسو ته بیان کړ چه په هغه دَ عمل کولو حکم ئِ تاسو له
درکړ یعني لس حکمونه چه هغه ئِ دَ کاڼِي په دوو تختو ولیکل ۱۴ او ۱۴
خداوند په هغه وقت ما ته حکم وکړ چه شریعتونه او حکمونه تاسو ته
وښیم څو چه تاسو په هغي مزکي باندِ چه ئِ دَ دفتریان کیدلو دَ پارَ
پوري غاړه ځئِ په هغو عمل وکړئِ ۱۵ نو تاسو په خپل ځان کښِ ډیر ۱۵
بیدار اوسئِ ځکه چه په هغي ورځي چه خداوند په حوریب کښِ دَ اور
په مینځ کښِ له تاسو سره خبري وکړي تاسو هیڅ څیره و نه لیدله -
۱۶ هسي نه وِي چه تاسو وران شئِ او دَ ځان دَ پارَ تراشلي شوي بُت ۱۶
نمونه دَ هر شکل په مثل دَ نر یا دَ ښځي څیره جوړه کړئِ ۱۷ دَ څه ۱۷
ځناور څیره چه په مزکي دِي یا دَ څه الوتونکي مرغه څیره چه په آسمان

۱۸ کښ اوزي ۱۸ يا دَ څه ځيز صورت چه په مزکي ښوئيږي يا دَ کوم کب صورت
۱۹ چه دَ مزکي دَ لاندِ په اوبو کښ دي ۱۹ هسي نه وِي چه تاسو آسمان
ته سترګي پورته کړئ او نمر او سپوږمئ او ستوري بلکه دَ آسمان ټول
لښکر ليدلي هغو ته سجده کول يا دَ هغو دَ عبادت کولو دَ پارَ تيل وهلي
شئ چه ستاسو خداوند الله هغوي دَ قومونو دَ پارَ چه ټول دَ آسمان
۲۰ دَ لاندِ دِي ويش کړي دي ۲۰ ولي خداوند تاسو واخستلئ او تاسو ئي دَ
اُسپني له تنور يعني له مصر نه را وکښلئ چه تاسو دَ هغه دَ دفتر
۲۱ خلق شئ لکه چه نن ورځ يئ ۲۱ او خداوند ستاسو له سببَ په ما په
قهر وه او قسم ئي وخوړ چه زه به له يردن نه پوري غاړه نه ځم او په
هغي ښي مزکي کښ چه خداوند الله ستا به ئي ستا دفتري کړي نه به
۲۲ داخليږم ۲۲ نو زه به په دي مزکي باندِ مرم ما له به له يردن نه پوري
غاړه کيدل نه وِي ولي تاسو به پوري غاړه لاړ شئ او دَ هغي ښي مزکي
۲۳ دفتريان به شئ ۲۳ بيدار اوسئ هسي نه وِي چه تاسو دَ خپل خداوند الله
عهد چه هغه له تاسو سره وکړ هير کړئ او دَ خپل ځان دَ پارَ تراشلي
شوي څيري يا دَ کوم څيز صورت جوړ کړئ ټول هغه چه ستا خداوند الله
۲۴ منع کړي يئِ ۲۴ ځکه چه ستا خداوند الله سوزونکي اور دَي هغه
۲۵ غيرتناک الله دي ۲۵ هر کله چه له تاسو نه زامن او نمسي پيدا شي
او تاسو زاړه شئ په مزکي باندِ او تاسو وران شئ او تراشلي شوي بت
يا دَ کوم څيز شکل جوړوئ او دَ خپل خداوند الله دَ وړاندِ سرکښي کوئ
۲۶ چه هغه په قهر کړئ ۲۶ نو زه به تاسو نن آسمان او مزکه شاهدان
کوم چه تاسو له هغي مزکي نه چه تاسو له يردن نه پوري غاړه ځئ چه
دفتريان ئي شئ زر به هلاک شئ تاسو به هلته ورځي تيري نه کړئ
۲۷ تاسو به فنا شئ ۲۷ او خداوند به تاسو په قامونو کښ خواره واره کړي
او تاسو به په قامونو کښ هرچرته چه خداوند تاسو بيائي لږ شان به
۲۸ پاتي شئ ۲۸ هلته به تاسو دَ هغو خدايانو عبادت کوئ چه دَ سړو له

لاسه جوړ شوي دي دَ لرګي او دَ كاڼړي چه نه ليدلي نه اوريدلي نه
۲۹ خوړلي نه بويولي شي ۲۹ ولي هلته هر كله چه ته خداوند الله خپل
ولټوي نو بيا به يې مومي چه په خپل زړه سره او په ټول روح خپل
۳۰ سره تپوس كونكي شي ۳۰ كه ته په سختئ كښ يې او په آخرو ورځو
كښ دا ټولي واقعي په تا تيري شي كه ته خپل خداوند الله ته را وګرزي او
۳۱ دَ هغه آواز آوري ۳۱ ځكه چه ستا خداوند الله رحيم الله دي هغه به
تا پري نږدي او نه به تا مړ كړي او نه به هغه عهد هير كړي چه دَ
هغه په باب كښ يې ستا له پلار نيكونو سره قسم خوړلي دي
۳۲ ۳۲ ځكه چه دَ پخوانو ورځو چه له تا نه پخوا تيري شولي له هغي ورځي
چه بني آدم الله په مزكي پيدا كړل تپوس وكړه او دَ آسمان له يوي ډډي
نه تر بلي ډډي پوري چه څه رنګ داسي لوي كار چري وشه يا دَ هغه
۳۳ په شان چري واوريدلي شه ۳۳ قام دَ الله آواز چري په اور كښ په
۳۴ خبرو واوريد لكه چه تا واوريد او ژوندي پاتي شوي ۳۴ يا چري الله
سعي كړي وه چه لاړ شي او يو ټولي دَ ټولي له منځ نه دَ امتحانونو او دَ
نښو او دَ معجزو په وسيلي سره او په جنګ سره او په زورور لاس
او په هسكو مټو سره او په لويو هيبتونو سره دَ ځان دَ پاره اختيار كړي
لكه چه ستا خداوند الله ستا دَ ستركو دَ وړاندي په مصر كښ ستا
۳۵ دَ پاره وكړل ۳۵ تا ته وښيلي شه چه ته وپوهيږي چه يهوه هم هغه
۳۶ الله دي او بې له هغه هيڅوك نشته ۳۶ هغه خپل آواز له آسمان نه
تا ته واوروه چه ستا تربيت وكړي او هغه په مزكي باندي تا ته خپل
۳۷ لوي اور وښيه او تا دَ هغه خبري په اور كښ واوريدلي ۳۷ او هر كوره
چه هغه ستا له پلار نيكونو سره مينه كوله پس له هغو نه يې دَ
هغو اولاد واڼوه او په خپل لوي قدرت سره يې ته له مصر نه دَ ځان
۳۸ دَ وړاندي را وويستلي ۳۸ چه ستا له مخي نه هغه قامونه چه له تا لوي
او توّاناك دي دفع كړي او تا داخل كړي او تا دَ هغو دَ مزكي دفتري كړي

۳۹ لګه چه نن ورځ ۳۹ نو نن ورځ پوه شه او په خپل زړه کښې غور وکړه
چه یَهُوَه هم هغه الله دې پورته په آسمان کښې دې او لاندې په مزکې
۴۰ کښې او بې له هغه هیڅوک نشته. ۴۰ نو ته دَ هغه شریعتونه او دَ هغه
حکمونه چه ئې نن تا ته حکم کوم وساته چه ستا او ستا دَ اولاد پس
له تا نه ښیګړه وشي او چه تاسو خپلې ورځې زیاتې کړئ په هغې مزکې
باندې چه خداوند الله به ئې تا له ترابده درکوي
۴۱ ۴۱ بیا موسیٰ نمرخاته ته له یردن نه په دې غاړې درې ودانئ بیلې
۴۲ کړلې ۴۲ دَ دې دَ پاره چه هغه خونې چه بې خبرَ خپل ګاونډي ووژني او
بخوا ورسره دُښمني کونکې نه وي او هر کله چه له هغو ودانو نه یوې ته
۴۳ وتښتي نو ژوندي به شي ۴۳ دَ بَصَر په بیابان کښې دَ روبینیانو دَ مزکې
په میدان کښې او راموت په جِلعاد کښې چه دَ جادیانو دې او جَولان
۴۴ په باشان کښې چه دَ مَنسیانو دې ۴۴ دا هغه شریعت دې چه موسیٰ دَ
بنِي اسرائیلو دَ وړاندې مقرّر کړ
۴۵ ۴۵ دا دِي هغه شاهدئ هغه شریعتونه هغه حکمونه چه موسیٰ
۴۶ بنِي اسرائیلو ته پس له راتلو دَ دوې له مصر نه بیان کړل ۴۶ له یردن
نه په دې غاړه په خوړ کښې بیتِ پَعُور ته مخامخ دَ اُموریانو دَ بادشاه
سِیحون په ملک کښې چه په حشبون کښې اوسیده چه موسیٰ او بنِي اسرائیلو
۴۷ هغه چه له مصر نه راوتلي وُو ووژه ۴۷ او هغوي دَ هغه دَ مزکې
او دَ مزکې دَ عوج بادشاه دَ باشان دفتریان شول دوي دَ اموریانو دوه
۴۸ بادشاهان وُو چه له یردن نه په دې غاړې دِي نمرخاته ته ۴۸ له عروعیر
نه هغه چه دَ اَرنون دَ خوړ په غاړې پورې دَ سِیُون تر غره پورې چه حرمون
۴۹ دي ۴۹ او ټول میدان له یردن په دې غاړې نمرخاته ته دَ میدان تر
دریاب پورې چه دَ پِسجاه دَ چینو دَ لاندې دي +

## پنځم باب

۱ ۱ او موسیٰ ټول اسرائیل وبلل او ورته ئې ووېل اي اسرائیلو شریعتونه

او حکمونه واوريِ چه نن ئي زه ستاسو په غوږونو کښ وايم چه تاسو
ئي زده کړيِ او و ئي ساتيِ او عمل پرِ وکړيِ ۲ په حوريب کښ څمونږ ۲
خداوند الله له مونږ سره يو عهد وکړ ۳ خداوند دا عهد څمونږ له پلار ۳
نيکونو سره و نه کړ خو له مونږ سره چه مونږ ټول نن ورځ دلته ژوندي
يُو ۴ خداوند له تاسو سره مخامخ په غره باندِ دَ اور له مينځ نه خبري ۴
وکړي ۵ په هغه وقت زه ستاسو او دَ خداوند په مينځ کښ ودريدلم ۵
چه دَ خداوند خبره تاسو ته ظاهره کړم ځکه چه دَ اور له سببَ نه
ويريدلي وئيِ او په غره و نه ختليِ نو هغه وويل
۶ چه زه يَهوَهْ ستا الله يم چه ته مِ دَ مصر له مزکي نه او دَ ۶
مريئوب له کور نه راويستلي ۷ څما دَ وړاندِ دِ ستا نور خدايان نه وِي ۷
۸ ته دَ ځان دَپارَ تراشلي شوي بُت يا هر شکل چه پورته په آسمان ۸
کښ يا لاندِ په مزکي باندِ يا کښته دَ مزکي په اوبو کښ مه جوړوه
۹ ته هغو ته سجده مه کوه مه دَ هغو عبادت کوه ځکه چه زه ستا ۹
يَهوَهْ الله غيرتناک الله يم چه دَ پلار نيکونو دَ گناه بدل دَ هغو
اولاد ته تر دريمي او تر څلورمې پيړي پوري چه له ما سره کينه لرِي
رَسوم ۱۰ او له زرگونو سره چه له ما سره مِينه کوِي او څما حکمونه ۱۰
ساتيِ احسان کوم
۱۱ ته دَ خپل يَهوَهْ الله نوم په باطلَ سره مه آخله ځکه چه ۱۱
يَهوَهْ هغه څوک چه دَ هغه نوم په باطلَ سره اخلِي بيگناه به ئُي و
نه گڼرِي
۱۲ دَ سبت ورځ يادَ لره او مُقَدَّس ئي وگڼره لکه چه يَهوَهْ الله ۱۲
ستا تا ته حکم کړي دي ۱۳ تر شپږو ورځو ته کار کوه او خپل ټول ۱۳
کارونه کوه ۱۴ ولي اوومه ورځ ستا دَ يَهوَهْ الله سبّت دَي په هغي ۱۴
ورځي هيڅ کار مه کوه نه ته نه ستا څوي نه ستا لور نه ستا مرئي
نه ستا وينځه نه ستا غوايه نه ستا خر نه ستا ټول څارويِ او نه

ستا مسافر چه دننه ستا په دروازو کښې وِي چه ستا مرئ او ستا
۱۵ وينځه ستا په شان آرام وکړِي ۱۵ دا هم يادَ لره چه ته دَ مصر په مزکي
کښې مرئ وې او له هغه ځاي نه يَهْوَهْ ستا الله په خپل زوراور لاس
او هَسکو متو سره ئې ته راوبستلي دَ دې دَپارَ يَهْوَهْ ستا الله تا ته
حکم وکړ چه ته دَ سبت ورځ يادَ لره
۱۶ ۱۶ دَ خپل پلار او دَ خپلې مور عزّت کوه لکه چه يَهْوَهْ ستا الله
تا ته حکم کړي دَي چه ستا دَ عمر ورځې ډيرې شي او چه په هغې مزکي
کښې چه ئې يَهْوَهْ الله تا له درکوِي ستا ښيګړه وشي
۱۷ ۱۷ ته خون مه کوه
۱۸ ۱۸ او ته زنا مه کوه
۱۹ ۱۹ او ته غلا مه کوه
۲۰ ۲۰ او ته په خپل ګاونډي باندِ په دروغه شاهدِي مه له
۲۱ ۲۱ ته دَ خپل ګاونډي ښځه مه خوښوه ته دَ خپل ګاونډي دَ کور دَ هغه
دَ مزکې يا دَ هغه دَ مرئ يا دَ هغه دَ وينځې دَ هغه دَ غوايه يا دَ هغه دَخره
يا دَ ګاونډي دَ ټول څه طمع مه کوه
۲۲ ۲۲ خداوند دا خبرې په غره باندِ دَ اور او دَ وريځې او دَ بې شانه تورتم
له مينځ نه ستاسو ټول جماعت ته په لوئي آواز سره ووېلي او زيات
ئې نه کړ او هغه دَ کاڼې په دوو تختو باندِ وليکلي او هغه ئې ما ته
۲۳ وسپارلي ۲۳ او داسې وشول چه هر کله چه دَ تيارې له مينځ نه تاسو
دا آواز واوريد څکه چه غر په اور سره سوځيده ستاسو دَ فرقو سرداران
۲۴ او ستاسو زاړه ما ته نزدې شولۍ ۲۴ او تاسو ووېل چه ګوره څمونږ
خداوند الله خپل شان او خپله لوئي مونږ ته ښکاره کړله او مونږ
دَ هغه آواز دَ اور له مينځ نه واوريده مونږ نن وليدل چه الله
۲۵ له سړي سره خبرې کوي او ژوندي وي ۲۵ نو اوس مونږ ولې هلاک
شُو چه دا داسې ډير اور به مونږ وسيزي که مونږ دَ خپل خداوند الله

آواز بیا واورو نو مونږ به مړه شُو ۲۶ څکه چه له ټولو سرو نه څوک دي ۲۶
چه ئي دَ اور له مینځ نه دَ ژوندي الله دَ خبرو آواز اوریدلي دي اوژوندي
دي لکه چه مونږ ۲۷ ته نژدي شه او ټول هرڅه چه خداوند څمونږ الله ۲۷
وائي واوره او هرڅه چه خداوند څمونږ الله تا ته ووائي ته مونږ ته ووایه
مونږ به ئي واورو او په هغه به عمل کوُو ۲۸ او چه تاسو ما ته خبري ۲۸
وویلي خداوند ستاسو دَ خبرو آواز واوریده نو خداوند ما ته وویل ما دَ
دي خلقو دَ خبرو آواز چه هغو تا ته وویلي واوریدلي هرڅه چه هغو
وویل ښه ئي وویل ۲۹ کاشکي که دَ هغو په زړه کښ داسي وِي چه ۲۹
هغوي له ما نه ویریږي او مدام ټول حکمونه څما وساتي چه دَ هغوي
دَپارَ او دَ هغو دَ اولاد دَپارَ تر ابدَ ښیګړه وِي ۳۰ لاړ شه هغوي ته ۳۰
ووایه چه خپلو خیمو ته وِجاروزيِ ۳۱ ولي ته دلته ما څخه ولاړ اوسه ۳۱
او زه به ټولي خبري او شریعتونه او حکمونه تا ته بیان کړم چه ئي هغو
ته وښیئِ چه هغوي په هغي مزکي کښ چه زه ئي ورکوم چه دفتریان ئي
شِي په هغو عمل وکړِي ۳۲ وساتئ چه عمل وکړئِ څه رنګ چه خداوند ستا ۳۲
الله تاسو ته حکم کړي دي او ښي او کیڼ لاس ته مه ګرزئِ ۳۳ تاسو ۳۳
په ټولو لارو باندِ چه خداوند ستاسو الله تاسو ته ویلي دِي ځئِ چه تاسو
ژوندِي اوسئِ او ستاسو ښیګړه وِي او په هغي مزکي باندِ چه تاسو
ئي دفتریان کیږئِ ستاسو دَ عمر ورځي ډیري شِي +

## شپږم باب

آ دا هغه شریعتونه او حقونه او حکمونه دِي چه ستاسو خداوند الله ستاسو ۱
دَ ښوولو دَپارَ حکم وکړ چه تاسو په هغي مزکي کښ چه دَ هغي دفتریان
کیږئِ پرِ عمل وکړِي ۲ چه ته له خداوند خپل الله نه وویرِي او دَ هغه ۲
ټول حقونه او دَ هغه ټول حکمونه چه زه ئي تا ته وایم وساتي ته او
ستا څوي او ستا نمسي تر ټولو ورځو ستا دَ عمر چه ستا ورځي زیاتي
کړي شِي ۳ نو اي اسرائیلَ واوره او دَ دي په کولو فهم وکړه چه ستا ۳

بښکره وشي او تاسو بې شانَ ډېر شئ په هغې مزکې کښ چه په کښ
شوده او شات بهيږي لکه چه خداوند ستا دَ پلار نيکونو الله تا ته ويلي
٤ ٥ دي ٤ واوره اي اسرائيلَ الله خمونږ خداوند الله يو دي ٥ ته په خپل ټول
٦ خان او په خپل ټول قوت سره خداوند خپل الله سره مينه کوه ٦ او دا
٧ خبرې چه ئې زه نن تا ته حکم کوم ستا په زړه کښ دِ وِي ٧ او ته به
کوشش سره خپلو زامنو ته ئې وښيه په هغه وقت چه ستا په کور کښ
کښيني او په هغه وقت چه ځې په لارې او په ملاستې اوپه پاسېدلو
٨ کښ دَ دوي قصې کوه ٨ او ته ئې دَ نښې دَپارَ په خپل لاس وتړه او
٩ هغه به ستا په سترګو کښ دَ داغونو په شان به وِي ٩ هغه دَ خپل
١٠ کور په درشلو او په خپلو ورونو باندِ وليکه ١٠ نو دا رنګ به وشي چه
هرکله چه خداوند الله ستا تا هغې مزکې له بوزې چه دَ هغې په باب کښ
هغه ستا له پلار نيکونو ابراهام او اسحٰق يعقوب سره قسم کړيدي
چه لوئې او ښه ښهرونه چه هغه تا ودان کړي نه دِي تا له به درکړي
١١ ١١ او له ښو خيزونو نه ډک ټول کورونه چه هغه تا ډک کړي نه دِي
اوکنودلي شوي کوهي چه هغه تا کنودلي نه دِي او دَ انګورو باغونه او دَ
زيتون وُني چه تا نه دِي کرلي ستا ته به ئې وبخښي او ته
١٢ به ئې خوري او ته به موړ شي ١٢ نه خبردار شه هسې نه وِي چه هغه
الله چه نه ئې دَ مصر له مزکې نه چه دَ مريونو کور وه بهر راويستلي
١٣ هير کړې ١٣ نه له خداوند الله خپلَ وېره کوه او دَ هغه عبادت کوه او دَ
١٤ هغه دَ نامې قسم خوره ١٤ تاسو دَ نورو خدايانو دَ قام له نورو خدايانو
١٥ نه چه له تا نه ګيرچاپېر دِي ورپسې مه ځئ ١٥ ځکه چه خداوند الله
ستا چه ستا په منځ کښ دي غيرتناک الله دي هسې نه وِي چه دَ
خداوند الله ستا قهر په تا وجوشيږي او تا دَ مزکې له مخ نه فنا کړي
١٦ ١٦ تاسو دَ خداوند الله خپل ازميښت مه کوئ لکه چه تاسو هغه په
١٧ مسّه کښ وازميه ١٧ تاسو به ډېر کوشش دَ خداوند الله خپل حکمونه

او دَ هغه شاهدئِ او دَ هغه حقونه چه هغه حکم وکړ وساتئِ ۱۸ او ۱۸
نه هم هغه کوه چه دَ الله په نظر کښِ سم او ښه دِي څوچه ستا
ښيګړه وشِي او چه ته داخل شي او دفترِي شي دَ ښي مزکي هغه چه
الله قسم کړی دي ستا له پلار نيکونو سره ۱۹ چه تول دښمنان دِ فنا ۱۹
کړِي ستا دَ وړاندِ لکه چه الله وويل ۲۰ او هر کله چه په راتلونکي زمانه ۲۰
کښِ ځوي له تا نه پوښتنه وکړِي او ووايِي چه دا څه رنګه شاهدئِ او
حقونه او حکمونه دِي چه څمونږ خداوند الله تا ته ويلي دِي ۲۱ نو ته خپل ۲۱
ځوي ته ووايه چه مونږ په مصر کښِ دَ فرعون مريونه وُو نو الله په خپل
قوّتناک لاس سره مونږ ئي له مصر نه راويستلو ۲۲ او الله لوي نښي او ۲۲
معجزِي او سختِي مصر ته او فرعون ته او دَ هغه تول خاندان ته څمونږ
دَ سترګو دَ وړاندِ وښوولي ۲۳ او هغه مونږ له هغه ځاي نه وويستلو ۲۳
چه مونږ راولِي او راکړِي مونږ له هغه مزکه چه ئي څمونږ له پلار نيکونو
سره قسم کړي وه ۲۴ نو الله مونږ ته حکم وکړ چه مونږ په دي تولو حقونو ۲۴
باندِ عمل وکړُو او له خداوند الله خپل نه وويرېږُو چه دَ مدام ښيګړِي څمونږ
دَپارَ وِي چه هغه مونږ ژوندِي لرِي لکه چه نن ورځ دَه ۲۵ او څمونږ ۲۵
راستِي به دا وِي که چرِي مونږ دَ خپل خداوند الله دَ وړاندِ دا تولو حکمونو
وساتُو او عمل پرِ وکړُو لکه هغه مونږ ته حکم کړِي دي ✣

## اووم باب

آ هر کله چه خداوند الله ستا تا په هغي مزکي کښِ چه ته ئي دفترِي کيږي ۱
داخل کړِي او ستا له مخي نه ډېر قامونه دفع کړِي حِتّيان او جرجاشيان
او اُموريان او کنعانيان او پرزّيان او حِويان او يبوسيان چه اووه قامونه
چه له تا نه لوي او زورور دِي ۲ او هر کله چه خداوند الله ستا هغوي ۲
ستا په حواله کړِي نو ته هغوي ووهه او بالکل ئي حرم کړه له هغو
سره هيڅ عهد مکوه او نه په هغوي رحم کوه ۳ او نه به هغو کښِ واده ۳
کوه خپله لور دَ هغه ځوي له مه ورکوه نه دَ خپل ځوي دَپارَ دَ هغه

۴ اور کوه ۴ ځکه چه هغوي به ستا ځوي ځما له تابعدارئ نه وګرزوي چه
هغوي دَ نورو خدایانو عبادت وکړي او دَ الله قهر به په تا وجوشیږي
۵ او هغه به تا سمدلاسَ هلاک کړي ۵ نو تاسو له هغوي سره دا کار
وکړئ تاسو دَ هغو دَ ذبح ځایونه ونړوئ دَ هغو بوتان مات کړئ دَ
هغو آشیره پریکړئ او دَ هغو تراشلي شوي ښهري په اور کښې وسیزئ
۶ ۶ ځکه چه ته دَ خداوند الله خپل دَپارَ پاک قام یئ خداوند الله ستا ته
وانړولي چه له ټولو قامونو نه چه په مخ دَ زمکي دي دَ هغه خاص قام
۷ شي ۷ الله له تاسو سره مینه وکړه او تاسو ئي وانړولئ دَدي دَپارَ نه
چه تاسو له ټولو قامونو نه زیات وئ ځکه چه تاسو له نورو قامونو نه
۸ لږ وئ ۸ بلکه دَ دي دَپارَ چه الله له تاسو سره مینه وکړه او هغه دَ هغه
قسم چه ستاسو له پلار نیکونو سره ئي وکړ لحاظ وکړ الله تاسو په خپل
زوراور لاس سره راوبستلئ او دَ مریي توب له کور نه او دَ مصر دَ
۹ بادشاه فرعون له لاس نه ئي تاسو خلاص کړلئ ۹ نو ته پوه شه چه یَهوَه
الله ستا هم هغه الله دي هغه وفادار الله دي چه نیتي او احسان
ساتي هغوي سره چه ورسره مینه لري او دَ هغه حکمونه تر زرو
۱۰ پیړو پوري ساتي ۱۰ او هغوي چه ورسره کینه لري دَ هغو په مخ کښې
بدله ورکړي او چه له هغه سره کینه لري درنګ به ونه کړي هغه
۱۱ به هغه له دَ هغه په مخ کښې بدل ورکړي ۱۱ پس ساتنه وکړه دَ هغو
شریعتونو او حقونو او حکمونو چه نن ما تا ته حکم کړي دي چه په
۱۲ هغو عمل وکړي ۱۲ نو که چري تاسو دغه حکمونه واورئ او و ئي ساتئ او
په هغو عمل وکړئ نو خداوند الله ستا هغه عهد او احسان چه ستا
۱۳ له پلار نیکونو سره ئي قسم کړي دَي ستا دَپارَ به ئي وساتي ۱۳ او له تا
سره به مینه وکړي او تا ته به برکت ورکړي او تا به ډیر کړي هغه
ستا دَ رَحِم په میوي او ستا دَ مزکي په میوي کښې ستا غلي او
ستا شراب او ستا تیل او ستا دَ غواؤ ډیروالي او ستا دَ ګډو په

کندوکونو کښې په هغې مزکې باندې چه ئې ستا له پلار نیکونو سره قسم وکړ
چه تا له به ئې درکوم برکت به وبخښې ۱۴ تا له به له ټولو قومونو نه زیات ۱۴
برکت درکړې شي نه به تا کښې او نه ستا په څارویو کښې به څه شنډ
وي ۱۵ او الله به هر قسم ناجوړتیا له تا نه لرې کړي او دَ مصر له ټولو ۱۵
بدو رنځونو نه چه ته ئې پېژنې هیڅ به په تا را نه ولې بلکه به هغو
ټولو به ئې کېږدي چه له تا سره کینه لري ۱۶ او ته به هغه ټول قامونه ۱۶
چه خداوند الله ستا به ئې ستا په حواله کوي و به نغرې په هغو به ستا
زړه سوي نه وي ته دَ هغو دَ خدایانو عبادت مه کوه چه هغه ستا
دَ پارَ دام دي ۱۷ که چرې ته په خپل زړه کښې ووایې چه دا غیر قومونه ۱۷
له ما نه زیات دي زه به هغوي په څه شان ویستلې شم ۱۸ نو ته له ۱۸
هغو نه مه ویرېږه بلکه هرڅه چه خداوند الله ستا فرعون او له ټول
مصر سره وکړل په ښه شان سره یاد کړه ۱۹ هغه لوي ازمېښتونه ۱۹
چه هغه ستا سترګو ولیدل او هغه نبې او هغه معجزې هغه
زوراور لاس هغه هسکې متې چه په هغو سره خداوند الله ستا ته
ئې را ویستلې نو خداوند الله ستا به له هغو قامونو نه چه ته ترې
ویرېږې هم داسې وکړي ۲۰ او خداوند الله ستا به هغوي له مچۍ ولېږي ۲۰
تر هغه پورې چه هغه څوک چه باقي او خپل ځان له تا نه پټوي هلاک
کړي ۲۱ ته له هغو نه هیبت مه خوره ځکه چه خداوند الله ستا چه په ۲۱
تا کښې دي زوراور او ویره وونکي الله دَي — ۲۲ او خداوند الله ستا هغه ۲۲
غیر قامونه به ستا دَ وړاندې لږ لږ وباسي ته هغوي سمدلاسه مه
نغره هسې نه وي چه دَ ځنګل ځناور به تا دېر شي ۲۳ خداوند الله ستا ۲۳
به هغوي ستا په حواله کړي او هغوي به په لوي هلاکت سره خراب
کړي تر دې حدَ پورې چه هغوي به فنا شي ۲۴ او هغه به دَ هغوي ۲۴
بادشاهان ستا په لاس درکړي او ته به دَ هغوي نوم دَ آسمان دَ لاندې
نه ونوکې او هیڅوک سړې به ستا مقابله ونه کړې شي تر دې حدَ پورې

٢٥ چه ته به هغوي هلاک کړي ٢٥ ته دَ هغو دَ خدايانو تراشلي شوي
خېري په اور سره وسيزه ته دَ هغو دَ سپينو زرو دَ سرو زرو چه په
هغو بانډِ دِي طمع مه کوه او هغه دَ ځان دَپارَ مه اخله تر هغه
پوري چه هسي نه وِي چه ته دَ هغي په دام کښ ونښلي ځکه چه دا
٢٦ ستا دَ خداوند الله دَ وړانډِ مکروه ده ٢٦ او ته هيڅ مکروه څيز کور ته
مه راوړه هسي نه وِي چه ته دَ هغه په شان ملعون شي ته ئي بدګڼړه
او له هغه نه بالکل کرکه کوه ځکه چه هغه حرام څيز دي ؞

# اتم باب

١ ١ په ټولو حکمونو بانډِ چه ئي نن زه تاسو ته حکم کوم وساتئِ چه
په هغو عمل وکړئِ تر هغه چه تاسو ژوندِي اوسئِ او ډېر شئِ
او په هغي مزکي کښ چه هغه الله ستاسو له پلار نيکونو ستاسو
٢ سره قسم کړي دي تاسو داخل شوي دَ هغي دفتريان شئِ ٢ اوَ هغه
ټوله لاره ياده لرئِ چه په هغي کښ خداوند الله ستا په صحرا کښ
ئي څلويښت کاله ته وګرزولي تر هغه چه تا ذليل کړِي او ازميښت
دِ وکړِي او ستا دَ زړه خبره معلومه کړِي چه ته به دَ هغه حکمونه
٣ وساتي که نه ٣ او هغه ته ذليل کړي او ته ئي وږي وساتلي او
هغه من چه تا هغه نه پيژندل او نه ستا پلار نيکونو پيژندل په
تا ئي وخوړول تر هغه چه دا تا ته معلومه کړِي چه سړي فقط هم په
ډوډئِ سره ژوندي نه اوسِي بلکه له هر هغه نه چه دَ الله له
٤ خولي نه راوځِي سړي ژوندي اوسِي ٤ دا څلويښت کاله نه ستا زړوکِي
٥ په تا زاړه شول او نه ستا ښپي وپړسيدلي ٥ ته په خپل زړه کښ
پوه شه چه لکه چه سړي خپل ځوي له ادب ورکوِي خداوند الله ستا
٦ تا له ادب درکوِي ٦ نو ته دَ خپل خداوند الله حکمونه وساته ځوچه دَ
٧ هغه په لاروځي او له هغه نه په وېره اوسه ٧ ځکه چه خداوند الله
ستا تا په ښي مزکي کښ راولي داسي مزکه چه په کښ دَ اوبو ولي اوچيني

۸ او جوړي چه له خوړونو نه او غرونو نه راوزي ۸ دَ غنمو او وربشو او
۹ انګورو او اینځرو اودَانارو مزکه دَ زیتون تیل او شات ۹ داسي مزکه چه
ډوډيِ به په کښې ونه خوري په فقیريِ سره مزکه چه کاڼي ئې دَاسپني
۱۰ دِي او له غرونو نه به ئي ته مِس وکني ۱۰ هر کله چه ته وخوري او
موړ شي هاله ته خداوند الله خپل دَ هغې ښې مزکي له سبب نه چه
۱۱ تاله ئې درکړي ده شکر به کوي ۱۱ خبردار شه چه ته خداوند الله خپل
هېر نه کړي چه دَ هغه شریعتونه او حقونه او حکمونه چه نن
۱۲ ئې زه تاته حکم کوم ونه ساتي ۱۲ هسې نه وِي چه هر کله چه ته
وخوري او موړ شي او صاف کورونه جوړ کړي او په هغو کښې اوسي
۱۳ ۱۳ او ستا غوا غوایان کهې بیري ډېر شي او سپین زر سره زر دِ
۱۴ زیات شي او ستا ټول مال زیات شي ۱۴ نو ستا زړه هسک شي او
ته یَهوَه الله خپل هېر کړي چه ته ئې دَ مصر له مزکي نه او له مریُوب
۱۵ له کور نه بهر راویستلي ۱۵ چه ته ئې په هغه لوي او خوفناک بیابان
کښې راوستلي چه په کښې سوزوونکي ماران او لړمان وُو او تنده وَه
اوبه نه وې چه ئي ستا دَپارَ دَ چخمخ له کاڼي نه اوبه راویستلي –
۱۶ ۱۶ چه هغه په بیابان کښې هغه مَن چه ستا پلار نیکونو نه پېژند
په تا وخوړول تر هغه چه تا ذلیل کړي او ستا ازمېښت وکړي
۱۷ چه په آخر کښې ستا ښېګړه وکړي ۱۷ نه په خپل زړه کښې ووائي چه
۱۸ ما په خپل زور او دَ خپل لاس په قوت سره دا دولت پیدا کړ ۱۸ خو
ته خداوند الله خپل یاد کړه ځکه چه هم هغه دي چه ئي تا له قوت درکړ
چه ته دولت پیدا کړي هغه عهد خپل چه هغه قسم ستا له پلار
۱۹ نیکونو سره وکړ پوره کړي لکه چه نن دي ۱۹ او که چرِ ته خداوند الله
خپل هېر کړي او دَ نورو خدایانو تابعداري او دَ هغو عبادت او هغو ته
۲۰ سجده وکړي زه شاهدي لم نن ورځ چه تاسو به مرهٔ شئ ۲۰ دَ هغو
غیر قامونه په شان چه ئي الله ستا دَ وړاندِ فنا کوي تاسو به هم

فنا شيِ له دي سبب نه چه تاسو دَ خپل خداوند الله آواز وانه وريد ÷

## نهم باب

۱ آ واوره اي اسرائيلَ تا له نن له اَردن نه پوري غاړه تلل دِي څوچه
تهَ دَ قامونو چه له تا نه لوي او زوراور دِي او ښهرونو چه لوي او
۲ دیوالونه ئي تر آسمان پوري لوړ دِي دفترِي شي ۲ قام لوي او لوړ دَي
چه دَ بنيِ عُناقيانو دي چه ئي ته پيژني اوريدلي دِ دِي چه واِئي څوك
۳ دي چه دَ بنيِ عناق مخي ته ودريږي ۳ نو ته نن پوه شه چه خداوند
الله ستا هغه دي چه دَ وړاندِ پوري غاړه ځي دَ سوزوونكي اور په شان
هغه به ئي هلاك كړي هغه به هغوي ستا دَ وړاندِ ذليل كړي نو ته په
خپل زړه كښ مه وايه ته به ئي وباسي او سمدلاسه به ئي مړه كړي
۴ لكه چه الله تا ته ويلي دِي ۴ هر كله چه خداوند الله ستا هغوي ستا
دَ وړاندِ و شړي چه زه الله دَ خپلي رښتينوالِئ له سبب نه په دي مزكي
كښ دَ هغي دفترِي كيدلو دَپارَ داخل كړم بلكه دَ دي قامونو دَ بديِئ له سببَ
۵ الله ئي ستا دَ وړاندِ نه شړي ۵ نه له خپلي رښتينوالِئِ نه او دَ خپل زړه
له راستيِ نه دَ هغو مزكي دفترِي كيدلو دَپارَ ورځي بلكه خداوند الله ستا
دَ هغو قامونو دَ بديِئ له سببَ هغوي ستا دَ وړاندِ وباسي چه هغه
خبره چه هغه په قسم سره ستا پلار نيكونو ابراهام او اسحق او
۶ يعقوب ته ويل پوره كړي ۶ نو ته پوه شه چه ستا خداوند الله
ستا دَ رښتينوالِئِ له سبب نه دا ښه مزكه دركوي چه دفترِي ئي شي
۷ ځكه چه ته گردن‌كش قام ئي ۷ نو يادَ كړه اومه ئي هيروه چه تا
خداوند الله خپل په بيابان كښ څه رنګه قهرولي كړ له هغي ورځي
نه چه تاسو له مصر نه بهر ووتلِئ تر هغه پوري چه دلته راغلِئِ
۸ تاسو له الله نه سركش وئِ ۸ او تاسو په حوريب كښ هم الله په
قهر كړ چه الله له تاسو نه تر سپيړمو شه چه تاسو فنا كړِي -
۹ ۹ چه زه دَ كاڼودَ دوؤ تختو اخيستلو دَپارَ په غره وختلم يعني دَ عهد

تختئ چه الله له تاسو سره وکړ نو زه څلوېښت ورځي او څلوېښت شپې
په غره باندِ پاتې شوم نه مَا ډوډئ وخوړله نه ما اوبه څښکلې ۱۰ نو ۱۰
الله دَ کاڼي دوه تختې دَ الله په ګوتې سره لیکلي شوي ما ته راکړلې
او په هغو باندِ دَ هغو ټولو خبرو په شان چه الله په غره باندِ دَاور
له مینځ نه دَ جمع کېدلو په ورځ درته ویلي وې ۱۱ او داسي وشول چه ۱۱
څلوېښت ورځي او څلوېښت شپې پس الله دَ کاڼو هغه دوه تختې یعني
دَ عهد دوه تختې ما له راکړې ۱۲ او الله ما ته وویل چه پاسه او له ۱۲
دې ځایه کوز لاړ شه ځکه چه ستا قام چه تا له مصر نه بهر راویستل
وران شول هغوي له هغې لارې نه چه هغو ته مِ حکم کړي وه زر بهر
لاړل هغو دَ ځان دَپارَ یو بُوت ویلي کړي شوي جوړ کړ ۱۳ بیا الله ۱۳
ما ته وویل چه ما دا قام ولیده او ګوره دا ګردنکش قام دي ۱۴ ما ۱۴
پرېږده چه هغه زه مړه کړم او دَ هغو نُوم دَ آسمان له لاندِ نه و
توړم او زه به له تا نه یو قام چه له دې قام نه زوراور او ډېر وِي
جوړ کړم ۱۵ نو زه راوګرځېدلم او له غره نه راکوز شولم او په غره اور ۱۵
پوري شوي وه او دَ عهد دوه تختې ځما په دوارو لاسونو کښ وي -
نو بیا ما وکتل او ګوره تاسو دَ خداوند الله خپل ګناه کړي وه او دَ ۱۶
خپل ځان دَپارَ مو ویلي کړي شوي خُسَي جوړ کړ تاسو ډېر زر له
هغې لارې چه الله تاسو ته حکم کړي وه بهر لاړئ ۱۷ نو ما هغه دوه ۱۷
تختې واخیستلې او له دوارو لاسونو نه مِ ارتاو کړلې او ستاسو دَ
سترګو دَ وړاندِ مِ ماتې کړلې ۱۸ او زه دَ اول په شان تر څلوېښتو ورځو ۱۸
او تر څلوېښتو شپو پوري الله ته پرمخي پرېوتلم نه مِ ډوډئ وخوړه نه
مِ اوبه وڅښکلې دَ هغو ټولو ګناهونو له سبب نه چه تاسو وکړل هرکله
چه تاسو دَ الله دَ وړاندِ داسي بدې وکړه چه هغه مو په قهر کړ ۱۹ نو زه ۱۹
دَ خداوند له قهر نه او دَ هغه له سخت غضب نه وډېرېدم چه هغه په
تاسو ډېر په قهر وه چه تاسو یٔ فنا کولِئ ولي الله په هغه وقت هم

۲۰ خما واوریدله ۲۰ او دَ خداوند دېر قهر په هارون باندِ هم په لنبو شه
۲۱ او دَ هغه په وژلو وه سا په هغه دَ هارون دَپارَ هم دُعا وغوښتله ۲۱ او
ما ستاسو دَ سخي گناه هغه چه تاسو جوړ کړي وه واخيست او په
اور کښ مِ وسيزه بیا مِ هغه وټکاوه او مَهين مِ اوړه کړ ذاسي
چه دَ گرد په شان او ما هغه گرد په هغي ولي کښ چه له غره نه
۲۲ وتلي وه وغورزاوه ۲۲ او په تَبعيراة او مَسّاه او قبرُوت هتاوه کښ
۲۳ تاسو خداوند په قهر کړ ۲۳ او هر کله چه خداوند تاسو له قادِشِ برنيع
نه واستولِۍ او و ئې ويل چه وخيژۍ او دَ هغي مزکي چه ما تاسو
له درکړي دَه دفتريان شيِۍ نو تاسو دَ خداوند خپل الله له ويلو نه و
گرزيدلِۍ او تاسو په هغه ايمان را نه وړ او دَ هغه آواز مو وا نه وريد
۲۴ ۲۴ له هغي ورځي نه چه ما تاسو وپيژندلۍ تاسو له خداوند سرکښي کوۍ
۲۵ ۲۵ نو زه دَ خداوند دَ وړاندِ خلوېښت ورځي او خلوېښت شپي پريوتلم لکه چه
۲۶ په خوا پريوتلم ځکه چه خداوند ويلي وُو چه زه به تاسو هلاک کړم ۲۶ او
ما له خداوند نه دُعا وغوښتله او ما وويل اي مالکَ يَهوَه خپل قام او
خپل دَ ميراث هغه چه تا له خپلي لوئي نه آزاد کړي دَي او هغه چه
تا په زوراور لاس سره له مصر نه دِ باهر راويستلي دي مه وژنه
۲۷ ۲۷ خپل خدمتكاران ابراهام او اسحٰق او يعقوب ياد کړه دَدي قام سرتيزۍ
۲۸ او گناه اوخطا ته مه گوره ۲۸ هسي نه وِي چه ووائۍ هغه مزکه چه
سونږ دِ تر رايستلي يُو دَدي دَپارَ چه خداوند نه توانيږي چه داخل کړي
دوي په هغي مزکي کښ چه هغه ئي وعده کړي وَه له دوي سره
او دَ دي دَپارَ چه کينه ئي ورسره وکړه و ئي يستل چه ئي په بيابان کښ
۲۹ هلاک کړي ۲۹ او دوي ستا قام دِي او ستا ميراث دَي چه تا رايستلي وه
په خپل لوي طاقت سره او په خپلو هسکو مټو سره ÷

## لسم باب

۱ آ په هغه وقت کښ ما ته خداوند وويل دوه تختي دَ کاڼي دَ

ورنبو په شان دَ ښان دَپارَ وتراشه او غره ته را وخيژه او جوړ کړه
۲ دَ ښان دَپارَ دَ لرګي صندوق ۲ نو و به لِيکم په هغو تختو بانِدِ هغه
خبري چه په ورنبو تختو باندِ وي هغه چه تا ماتي کړلي او په صندوق
۳ کښ ني کيږده ۳ نو صندوق مِ جوړ کړ دَ کيکر له لرګي نه او دوه تختي
مِ وتراشلي له کاڼي نه دَ ورنبو په شان او غره ته وختلم او دواړه
۴ تختي مِ په لاس کښ وي ۴ نو وئي ليکلي په هغو تختو بانِدِ دَ ورنبو
ليکلو په شان هغه لَس خبري چه خداوند تاسو ته په غره کښ ويلي
وي دَ اور له مينځ نه په ورځي دَ يو ځاي کيدلو او خداوند ما له هغه
۵ راکړي ۵ بيا را وجاروتلم او راکوز شولم له غره نه او دواړه تختي مِ
په صندوق کښ کيښودلي هغه چه ما جوړ کړي وي نو دِي هلته
۶ لکه چه خداوند ما ته حکم کړي وه ۶ او بني‌اسرائيلو له بيروث نه دَ
بنِي‌يَعقان موسيراه ته کوچ وکړ هلته هارون مړ شه او هلته ښخ شه
۷ نو العازار ځوي ئِي دَ هغه په ځاي کوهين شه ۷ له هغه ځاي نه
وکوچيدل جُدجودا نه يُاطُبانا ته چه مزکه دَ ولو دَ اوبو ده
۸ ۸ په هغه وقت کښ خداوند بيل کړ توليَ دَ لاوِي چه دَ خداوند دَ
عهد صندوق پورته کوِي او چه دَ خداوند دَ وړاندِ ودريږي چه خدمت
۹ ئِي وکړِي او دَ هغه په نُوم برکت وغواړِي تر دي ورځي پوري ۹ دَدي دَپارَ
دَ لاوي حصّه او دفتر له ورونړو سره نشته خداوند ئِي دفتر دي لکه
۱۰ چه ستا خداوند الله هغه ته وويل ۱۰ او زه په غره کښ و دريدلم
دَ پخوانو ورځو په شان څلويښت ورځي او څلويښت شپي او په هغه
ځل هم خداوند زما واوريدله او خداوند و نه غوښتله چه تا هلاک
۱۱ کړِي ۱۱ بيا خداوند ما ته وويل پاسه لاړ شه دَ کوچ دَپارَ وړاندِ دَ قام
چه داخل شِي او دفتريان ښِي دَ هغي مزکي چه مِ قسم کړي دي دَ
دوي له نيکونو سره چه ور به ئِي کړم
۱۲ ۱۲ نو اوس اي اسرائيلَ يَهوَهَ الله ستا له تا څه غواړي بي له

دي چه ته ووېرېږې له خداوند الله خپل نه چه په ټولو لارو باندِ ئې ځې
او محبّت ور سره کوي او دَ خداوند الله خپل عبادت کوي په ټول زړه
خپل او په ټول ځان خپل سره ۱۳ او دَ خداوند حکمونه وساتي اوحقونه ۱۳
ئې هغه چه زه ئې تا ته وايم نن ورځ ستا دَ ښېګړې دَپاره ۱۴ ګوره دَ ۱۴
خداوند الله ستا آسمانونه او آسمان دَ آسمانونو دي او مزکه او ټول څه
چه په کښِ دي ۱۵ فقط خداوند ستا له نيکونو سره خوشحال دي چه ورسره ۱۵
مينه وکړي نو پس له هغوي نه دَ هغو اولاد ئې غوره کړ چه هغه
تاسو يئِ له ټولو قامونو نه لکه په نن ورځ کښِ ۱۶ نو تاسو دَ خپلو ۱۶
زړونو ختنه وکړئِ او کوردنکتي مه کوئِ بس له دي نه ۱۷ چه خداوند ۱۷
ستاسو الله هغه الله دَ خدايانو او خداوند دَ خداوندانو هغه الله
لوي زورآور هيبتناک دي هغه چه دَچا مخ نه کوي او بډې نه اخلي
۱۸ هغه منصفي کوي دَ يتيمانو او دَ کونډو او دوست دي دَ مسافر ۱۸
چه خوراک او زړوکي ورکوي ۱۹ نو تاسو دوست لرئِ مسافر چه تاسو مسافران ۱۹
وئِ دَ مصر په مزکي کښِ ۲۰ له خداوند الله خپل نه وېرېږه دَ هغه ۲۰
عبادت کوه او له هغه سره پيوست شه او دَ هغه په نوم قسم
خوره ۲۱ هغه بډائي ستا دي او هغه الله ستا دی چه له تا سره ئې ۲۱
وکړل هغه لوي او دَ وېرو کارونه هغه چه ستا سترګو ليدلي وُو ۲۲ اَوْيا ۲۲
سړي ستا نيکونه راکوز شول مصر ته او اوس خداوند الله ستا
دَ آسمان دَ ستوريو په شان ئې ډېر کړئِ ❖

## يولسم باب

آ نو ته خپل خداوند الله دوست لره او دَ هغه ساتنه اوحقونه او ۱
حکمونه او وينا ټولي ورځي وساته ۲ نو تاسو پوه شئِ نن ورځ زه نه وايم ۲
ستاسو زامنو ته هغوي چه ئې پېژندلي نه دي او نه ئې ليدلي دي آدب
دَ خداوند الله ستاسو بزرګي دَ هغه او زورآور لاس دَ هغه او هسکې
متې دَ هغه ۳ او معجزي ئې او هغه کارونه چه وئې کړل په مصر ۳

کښې له فرعون بادشاه دَ مصر سره او له ټولي مزکي دَ هغه سره ۴ او ۴
هغه چه ئې وکړل دَ مصر له لښکر سره له اسونو سره ئې او له کاډو
سره ئې هغه چه ئې چاپېره کړلې اوبه دَ قالي درياب هغه وقت چه په
تاسو پسي وزغليدل نو هغوي خداوند هلاک کړل تر نن ورځې پوري -
۵ او هغه چه ئې وکړل له تاسو سره په بيابان کښې څوچه تاسو راغلئ ۵
تر دې ځايه پوري ۶ او هغه چه ئې وکړل له داثان او ابيرام زامن دَ ۶
اَلِياب څوي دَ روبين سره چه څه رنګ مزکي خپله خوله وازه کړله او
و ئې نغړدل سره دَ کورونو خپلو او دَ خيمو خپلو او ټول مال چه ورځنه
وه په ميځ دَ ټولو اسرائيلو کښې ۷ بلکه ستاسو سترګو وليدل هغه ۷
ټول لوی کارونه دَ خداوند هغه چه ئې وکړل ۸ نو وساتئ ټول حکمونه ۸
هغه چه زه تاسو ته حکم کوم نن ورځ چه زوراور شئ او داخل شئ او
دفتريان شئ دَ مزکي هغه چه تاسو ورځئ چه دفتر ئې کړئ ۹ اوچه ډېره ۹
موده اوسئ په هغي مزکي باندې چه قسم کړی دی خداوند ستاسو له پلار
نيکونو سره چه هغوي له ئې ورکوي او دَ هغو اولاد له مزکه چه په کښې
شوده او شات بهيږي ۱۰ ځکه چه هغه مزکه چه ور داخليږئ چه ۱۰
دفتر ئې کړئ دَ مصر دَ زمکي په شان نه ده هغه چه ته تر وتلي وې
هلته چه خپل تخم به دِ کاوه او اوبه کاوه به دِ په خپلو پښو سره
لکه باغ دَ ساګونو ۱۱ بلکه هغه زمکه چه تاسو ورځئ چه دفتر ئې کړئ ۱۱
هغه مزکه دَ غرونو او دَ درّو ده دَ آسمان له باران نه اوبه څښکي
۱۲ مزکه چه غوره کوي ئې خداوند الله ستا سترګې دَ خداوند الله ستا ۱۲
په هغي مدام دَ کال له سر نه تر آخر پوري دي ۱۳ نو داسي به وشي ۱۳
چه تاسو په ښه شان سره واورئ ځما حکمونه چه ئې زه نن تاسو ته
حکم کوم چه دوست لرئ خداوند الله خپل او دَ هغه عبادت کوئ په ټولو
زړونو خپلو او په ټولو ځانونو خپلو سره ۱۴ وبه بخښم باران ستاسو ۱۴
مزکي ته دَ هغه په وقت کښې وړونبئ او ورستيني نو ته به جمع کړي

۱۵ غنم خپل او شراب خپل او تیل خپل ۱۵ او و به بخښم ستا دَ
خاروِیو دَپارَ وابنه ستا مزکې ته نو و به خوري ته او موړ به
۱۶ شي ۱۶ نو پرهیز وکړئِ هسي نه چه ستاسو زړونه وغولیږي نو
وجاروزئِ او عبادت کوئِ د نورو خدایانو او هغو ته سجدي کوئِ
۱۷ ۱۷ نو په جوش به شِي غضب دَ خداوند په تاسو او بند به کړي آسمانونه
نه به وِي بارانونه او نه به کِړي مزکه غله خپله نو فنا به شئِ زر له
هغي ښي مزکي نه چه خداوند به ئې تاسو له درکوي
۱۸ ۱۸ نو ځاي کړئِ ځما دا خبري په زړونو خپلو کښ او په ځانونو
خپلو کښ او و ئې تړئِ نښه په لاسو خپلو باندِ چه شِي تعویز ستاسو
۱۹ په سترګو کښ ۱۹ او ور زده ئې کړئِ خپل اولاد ته خبري کوونکي ئې شئِ
په هغه وقت چه کښینئِ په خپلو کورونو کښ او چه ځئِ په لاري او
۲۰ ځملئِ او چه پاسئِ ۲۰ او و ئې لیکه په درشلو دَ ورونو دَکور خپل او
۲۱ په دروازو خپلو باندِ ۲۱ چه دیري شِي ورځي ستا او ورځي ستا دَ
اولاد په هغي مزکي باندِ چه قسم کړي دي خداوند ستا له پلار نیکونو
۲۲ سره چه ور به ئې کړي لکه ورځي دَ آسمان په مزکي باندِ ۲۲ که به ښه
شان سره تاسو وساتئِ دا ټول حکمونه هغه چه زه ئې تاسو ته حکم کوم
چه پرِ عمل وکړئِ او دوست لرئِ خداوند الله خپل او دَ هغه په ټولو
۲۳ لارو ځئِ او ورسره پیوست شئِ ۲۳ و به شړي خداوند ټول هغه غیر
قامونه ستاسو له مخي نه نو تاسو به وارثان شئِ دَ غیر قامونو چه له
۲۴ تاسو نه لوي او دیر دِي ۲۴ هر ځاي چه ستاسو دَ پښو تلي ئې لتاړ
وِي ستاسو به شِي له بیابان نه او له لُبنان نه او ولي نه چه واله دَ
۲۵ فرات ده تر ورستي سیند پوري ستاسو حد به وِي ۲۵ څوک سري به
ستاسو مخي ته و نه دریږي ستاسو خداوند الله ستاسو دیره او ستاسو
هَیبت به په ټولي مزکي باندِ پریباسي چه ئې تاسو لتاړوئِ لکه چه ئې
تاسو ته ویلي دي

۲۶ ۲۶ وګوره زه بِدم نن ورځ ستاسو دَ وړاندِ برکت او لعنت۔
۲۷ ۲۷ برکت هر کله چه تاسو واورئِ حکمونه دَ خداوند الله خپل هغه چه
۲۸ زه ئِي حکم کوم تاسو ته نن ورځ ۲۸ او لعنت هر کله چه تاسو وا نه
وريئِ حکمونه دَ خداوند الله خپل او وګرزيږئِ له لاري نه هغه چه زه
ئِي حکم کوم تاسو ته نن ورځ چه تاسو لاړ شئِ په نورو خدايانو پسي
۲۹ چه ئِي نه پيژنئِ ۲۹ او هر کله چه راولي تا خداوند الله ستا هغي مزکي
ته چه ته به ور داخليږي چه دفتري ئِي کړي نو ورکړه برکت دَ جرزيم
۳۰ په غره باندِ او لعنت دَ عيبال په غره باندِ ۳۰ اي هغوي نه دي په
پوري غاړه دَ اُردن نمر پريواته طرف ته دَ کنعانيانو په مزکي کښِ استوګي
۳۱ دِي په بيابان کښِ مخامخ جلجال ته دَ موري دَ بلوطو طرف ته ۳۱ نو
تاسو به تيريږئِ له اَردن نه چه داخل شئِ او دفتريان شئِ دَ هغي مزکي
چه خداوند الله ستاسو به ئِي تاسو له درکوِي دفتر ئِي کړئِ او استوګنه ئِي
۳۲ کړئِ ۳۲ نو تاسو وساتئِ ټول حقونه او حکمونه چه ئِي زه بِدم ستاسو
دَ وړاندِ نن ورځ چه پرِ عمل وکړئِ ✦

# دولسم باب

۱ ۱ دا هغه حقونه او حکمونه دِي چه وئِي ساتئِ چه پرِ عمل وکړئِ
په هغي مزکي کښِ چه درکړي ده تا له خداوند الله دَ پلار نيکونو ستا
چه دفتر ئِي کړي ټولي ورځي (دَ عمر) چه ژوندي يي په مزکي باندِ
۲ ۲ وران کړئِ ټول ځايونه چه هلته قامونو دَ خپلو خدايانو عبادت کړي
دي هغه چه تاسو به ئِي دفتريان شئِ په لويو غرونو باندِ او په غونډو
۳ باندِ او لاندِ دَ هري شني وني ۳ او ونړوئِ مذبح دَ هغو او مات
کړئِ څلي دَ هغو او بنړونه ئِي وسيزئِ په اور سره او پريکړئِ کنودلي
څيري دَ خدايانو دَ هغو او ورکړئِ نوم دَ هغو له هغه ځاي نه۔
۴ ۴ داسي کار مه کوئِ له خداوند الله خپل سره ۵ بلکه هغه ځاي چه
۵ خوښ ئِي کړي خداوند الله ستاسو له ټولو فرقو نه چه کيږدِي نوم خپل

۶ هغه ځاي ئې طلب کوئِ او هلته راځئِ ۶ او وړاندِ کوئِ هلته دَ سوزولو
قربانئِ ځپلي او ذبيحې ځپلي او عُشرونه ځپل او پورته کړي شوي دَ لاسونو
ځپلو او نذرونه ځپل او خيراتونه ځپل او ورنبي پيدا شوي دَ غواؤ
۷ ځپلو او دَ ګډو بزو ځپلو ۷ او خورئِ تاسو هلته وړاندِ دَ خداوند الله
ځپل او خوشحاليږئِ په ټول هغه چه اوږديږي لاسونه ستاسو تاسو
او ستاسو کورونه لکه چه برکتي کړي يئِ تاسو خداوند الله ځپل
۸ ۸ تاسو عمل مه کوئِ په شان دَ هرڅه چه مونږ دلته عمل
۹ کوونکي يُو نن ورځ هر سړي چه ورته ښه ښکاريږي ۹ ځکه چه تاسو
داخل شوِي نه يئِ تر دي ساعتَ دَ آرام ځاي ته او دفتر ته چه تاسو
۱۰ له به ئي درکوِي خداوند الله ستاسو ۱۰ نو هر کله چه تير شوئِ له اُردن
نه او استوګي شوئِ په هغي مزکي کښ چه خداوند الله ستاسو درکوِي
چه دفتر ئي کړئِ او آرام درکړي له ټولو دُښمنانو ستاسو نه چه کيرچاپير
۱۱ دِي او استوګي شئِ په امن سره ۱۱ نو هغه ځاي چه غوره ئي کړي خداوند
الله ستاسو چه نُوم ئي په کښ کيښکودلي شِي هلته وړئِ ټول هغه څه
چه زه ئي حکم کوم تاسو ته دَ سوزولو قربانئِ ځپلي او ذبيحې ځپلي
او عُشرونه ځپل او پورته کړِي شوِي دَ لاسونو ځپلو او ټول ښه
۱۲ نذرونه ځپل هغه چه تاسو ئي نذر کوئِ دَ خداوند دَ پارَ ۱۲ او خوشحالَ
اوسئِ دَ وړاندِ دَ خداوند الله ځپل تاسو او زامن ستاسو او لُونړه ستاسو
او مريونه ستاسو او وينځي ستاسو او لاوِي هغه چه ستاسو په دروازو
کښ دِي ځکه چه دَ هغه حِصّه او دفتر له تاسو سره نشته
۱۳ ۱۳ پرهيز وکړه چه و نه خيژوي دَ سوزولو قربانئِ ځپلي په هر ځاي
۱۴ کښ چه ته ئي ووِيني ۱۴ بلکه په هغه ځاي کښ چه غوره ئي کړي خداوند
په يَوَه کښ ستا له فرقو نه هلته وخيژوه دَ سوزولو قربانئِ ځپلي او
۱۵ هلته په عمل راوړه ټول هغه چه زه ئي تا ته حکم کوم ۱۵ ولي له هر
څه نه چه ئي ستا روح غواړي حلالوَه او غوښه ئي خوره په ټولو دروازو

خپلو کښې په شان دَ برکت دَ خداوند الله خپل هغه چه تا له ئې درکړي
16 دي دَ ناپاکه او دَ پاکه دِ وخوري لکه هوسئ او کاوزه ۱۶ فقط وينه
17 ئې مه خوره په مزکه ئې دَ اوبو په شان توي کړه ۱۷ ته مه خوره په خپلو
دروازو کښې عُشر دَ غنمو خپلو او دَ شرابو خپلو او دَ تيلو خپلو
او دَ ورنبو پيدا شويو دَ غواوُ خپلو او دَ ګډو بزو خپلو او نه نذرونه
چه ته ئې نذر کړې او نه خيراتونه ستا او پورته کړې شوې دَ لاسونو
18 خپلو ۱۸ بلکه وړاندِ دَ خداوند الله خپل ئې وخوره په هغه ځاې کښې چه
غوره ئې کړې خداوند الله ستا ته او ستا ځوي او ستا لُور او ستا
مريې او ستا وينځه او لاوِي چه ستا په دروازو کښې وِي او وړاندِ
دَ خداوند الله خپل خوشحال اوسه په ټول هغه چه وراوږدېږې لاس
19 ستا ۱۹ پرهيز وکړه چه لاوِي ټولي ورځي دَ عمر خپل په مزکي خپلي باندِ
ترک نکړې
20 ۲۰ هر کله چه خداوند الله ستا حدونه ستا ارت کړي لکه چه تا
ته ئې ويلي وُو او ته ووائې چه زه به غوښه خورم ځکه چه نفس ستا
غواړي چه غوښه وخوري نو غوښه و به خوري له هر څيز نه چه ستا
21 نفس ئې غواړي ۲۱ که هغه ځاې چه خداوند الله ستا ئې غوره کړي
چه خپل نُوم په کښې کيږدي له تا نه لرې وِي نو ته حلال کړه له
غواوُ خپلو نه او له ګډو بزو خپلو نه هغه چه خداوند تا له درکړي
دِي لکه چه ما تا له حکم درکړي دي او خوره په دروازو خپلو کښې
22 له هر هغه څيز نه چه ستا نفس غواړي ۲۲ لکه چه خوړلې شي هوسئ
او کاوزه په هغه شان ئې خوره ناپاک او پاک دواړه په يو شان
23 به خوري ۲۳ ولي پرهيز وکړه چه ته وِينه و نه خوري ځکه چه وِينه
24 بيدَو روح دي نو ته ئې مه خوره روح له غوښي سره ۲۴ مه ئې
25 خوره په مزکي ئې توي کړه دَ اوبو په شان ۲۵ ته ئې مه خوره چه ستا
او ستا دَ اولاد دَ پاره پس له تا نه ښيګړه وشي که ته عمل وکړي

۲۶ رښتیا دَ خداوند دَ سترګو دَ وړاندِ ۲۶ او څه چه پاکې خپلي هغه چه
ستا وِي او نذرونه خپل نو وا ئې خله او لاړ شه هغه ځاي له
۲۷ هغه چه خداوند ئې غوره کړِي ۲۷ نو ته عمل وکړه دَ سوزولو په قربانو
خپلو غوښه او وِيني په مذبح دَ خداوند الله خپل او وِيني دَ ذبحو
خپلو دِ ئې توي کړِي شِي په مذبح دَ خداوند الله ستا او غوښه به
۲۸ ئې ته خوري ۲۸ وساته او واوره ټولي دا خبري هغه چه زه ئې تا ته
حکم کوم چه تا له او ستا اولاد له پس له تا نه ښیګړه وشي درست
عمر هر کله چه ته وکړِي نیکي او رښتیني دَ خداوند الله خپل دَ سترګو
۲۹ دَ وړاندِ ۲۹ هر کله چه خداوند الله ستا بیځایِي وکړِي ستا دَ وړاندِ
هغه غیر قامونو چه ته وله ځي چه دفتر ئې کړِي او دفتري ئې شوي
۳۰ او استوګي شوي دَ هغو په مزکي کښښ ۳۰ نو پرهیز وکړه هسي نه چه
ښکار کړي شي په هغوي پسي پس له تلو نه له هغه چه هغه فنا
شِي ستا دَ وړاندِ او چه له دي پښتنه و نه کړِي دَ هغو له خدایانو
نه ووائي چه څه رنګ عبادت کړِي دي دي غیر قامونو دَ خدایانو خپلو
۳۱ نو زه به هم کار وکړم په دي شان ۳۱ ته عمل مه کوه په دي شان
له خداوند الله خپل سره ځکه چه دوي هر مکروه کار خداوند ته چه
هغه ترِ نفرت کوِي له خپلو خدایانو نه کړِي دي چه و ئې سیزل تر
۳۲ زامنو تر لونړو خپلو په اور دَ خپلو خدایانو دَ پارَ ۳۲ هره خبره چه
ئې زه تاسو ته حکم کوم وساته ورباندِ مه زیاتوِه او مه ترِ کموه ✣

## دیارلسم باب

۱ که نبي یا لیدونکي دَ خوب ستاسو په منځ کښښ پیدا شِي او تا له
۲ نښه یا معجزه درکوِي ۲ او هغه نښه یا هغه معجزه وشي چه ئې له تا
سره ویل کړِي وُو ووائي چه مونږ به ځو نورو خدایانو پسي چه ته ئې
۳ نه پیژني او عبادت به ئې کړو ۳ نو مه اوره خبره دَ هغه نبي یا دَ خوب
لیدونکي ځکه چه خداوند الله ستاسو ازمینښت کوِي ستاسو چه معلومه

کړِي چه آيا تاسو محبّت کوئِ له خداوند الله خپل سره په ټولو زړونو
خپلو سره ٤ خداوند الله خپل پسې ځئِ او له هغه نه ويرېږئِ او ٤
حکمونه ئې وساتئِ او آواز ئې اورئِ او دَ هغه عبادت کوئِ او ورسره
پيوند شئِ ٥ او هغه نبي او ليدونکي دَ خوب دِ ووژلي شِي ځکه چه ٥
هغه ويل کړِي وُو دَ جاروتلو له پيروئِ دَ خداوند الله ستاسو چه
ئې تاسو رايستلي يئِ دَ مصر له مزکې نه او خلاص ئې کړئِ دَ مريي توب
له کور نه چه له هغې لارې نه تاسو واړوي چه خداوند الله ستاسو
حکم درکړِي وه چه تاسو په هغې کښې ځئِ نو ته به بدي له خپل
مينځ نه لرې کړې ٦ او که وغلوي تا پټ ستا ورور ستا دَ مور ځوي ٦
او يا ستا خپل ځوي يا لُور يا همکناره ښځه او ستا آشنا چه دَ
ځان په شان دِ دي ووائِي چه مونږ به ځُو او عبادت به کُوُو دَ نورو
خدايانو چه نه ئې پيژنې ته او نه ستا پلار نيکونو ٧ له خدايانو دَ غير ٧
قامونو هغوي چه ګيرچاپير له تا نه دِي نژدې تا ته يا لرې له تا نه دَ زمکې
له يو سر نه تر بلَ سرَ دَ زمکې ٨ نو ته ئې مه منظوروَه او مه ئې ٨
اَوره او دَ مهربانګئِ نظر خپل پرِ مه کوه او نرمي پرِ مه کوه او مه
ئې پټوه ٩ بلکه ضروري ئې ووژنه ستا لاس دِ په هغه باندِ وړومبَي ٩
وِي دَ هغه دَ مرګ دَپارَ بيا ورپسې لاسُونه دَ نورو قامونو ١٠ په ١٠
کاڼو ئې وله ځو چه مړ شِي ځکه چه هغه وغوښتله چه تا واړوي
له خداوند الله خپل نه چه ئې ته رايستلي يې دَ مصر له مزکې نه دَ
مريي توب له کور نه ١١ نو وا به ورِي ټول اسرائيل او وبه ويرېږِي او ١١
داسې دَ شر کار ستا په مينځ کښې به نه کوِي
١٢ که نه واورې په يو له ښهرونو خپلو کښې چه خداوند ستا تا ته ١٢
درکړِي دِي چه هلته اوسې ووائِي چه ١٣ خلق دَ بني بَلْعال ستا له ١٣
مينځ نه ووتل او بې لارئِ کړل استوګې دَ ښهر خپل او ويل ئې چه مونږ
به ځُو او عبادت به کُوُو دَ نورو خدايانو چه تاسو ئې نه پيژنې ١٤ او ١٤

تپوس وکړه او ولټوه او پوښتنه وکړه په ښه شان او ګوره که رښتیا
شي او هغه خبره یقیني شي چه کړي شوي دي دا مکروه کار ستا په
۱۵ مینځ کښې ۱۵ نو ته به ضرور ووهي استوګي دَ هغه ښهر په تیري توري
سره او وژنه هغه او ټول چه په هغه کښې دِي سره له څارویو ئي به
۱۶ توري تیري سره ۱۶ او ټول لوټ به ئي جمع کړي په مینځ دَ انګڼ کښې او
ښهر به په اور سره وسیزي او ټول لوټ دَ هغه دَ پارَ دَ خداوند الله
۱۷ خپل نو هغه به همیشه وران وِي او بیا به ودان نه کړي شي ۱۷ او
پیوست دِ نه شي ستا له لاس سره هیڅ څیز له حرام کړي شوي نه چه
را وګرځي خداوند له سخت قهر خپل نه او تا له درکړي رحمت رحم
به تا وکړي او دیر دِ کړي لکه چه قسم ئي کړي دي ستا له پلار نیکونو
۱۸ سره ۱۸ چه واوري آواز دَ خداوند الله خپل ټول حکمونه ئي وساتي هغه
چه زه ئي تا ته حکم کوم نن ورځ چه ته عمل دَ رښتیا وکړي وړاندِ
دَ سترګو دَ خداوند الله خپل ❊

## څوارلسم باب

۱ ۱ تاسو زامن دَ خداوند الله خپل یئِ مه نوکاري کوئِ خانونه خپل او
۲ مه خریئِ ویښته په مینځ دَ سترګو خپلو دَ مړي دَ پارَ ۲ ځکه چه ته
پاک قام یي دَ پارَ دَ خداوند الله خپل او ته خداوند خپل غوره کړي
چه دَ هغه دَ پارَ خاص قام شي له ټولو قامونو نه چه دَ مزکي په مخ دِي
۳ ۴ ۳ مه خوره هیڅ مکروه ۴ دا دِي هغه څاروي چه تاسو ئي خوړلي شئِ
۵ غوا او ګډي او بزي ۵ کاوزه او هوسئِ او یحمور او غرڅه او دیشون
۶ او تیو او زمر ۶ او هر څاروي چه نوکي ئي خیرلي وِي او جوړ شي
۷ تر دوه نوکونه او له څارویو نه چه شخوند کوي تاسو ئي خوریئِ ۷ نو
تاسو ئي مه خوریئِ له هغو نه چه شخوند وهي او له هغو نه چه نوکي
ئي خیرلي ئي نه وِي لکه اوښ او خرګوش او شافان ځکه چه دوي شخوند
۸ کوي ولي نوکي ئي خیرلي نه دِي نو دوي پلیت دِي ستاسو دَ پارَ ۸ او

خربيښوي ځکه چه نوکي يې ښيرلي دِي ولي ښخوند نه کوي نو هغه ستاسو
دِپارَ پَليت دِي نو تاسو دَ هغوي له غوښې نه مه خورئ او په تنهٔ
يې لاس مه وهئ
۹ له ټولو هغو نه چه په اوبو کښې دِي دا به خورئ ټول هغه ۹
چه يې وزر او پوسنکي يې وِي تاسو به يې خورئ ۱۰ ولي ټول هغه چه ۱۰
يې وزر او پوستکي نه وِي تاسو يې مه خورئ ځکه چه هغه پَليت دِي
ستاسو دِپارَ ۱۱ هر مرغه چه پاک دي تاسو به يې خورئ ۱۲ او دا هغه ۱۱ ۱۲
دِي چه تاسو به يې نه خورئ نَسر او عُقاب او کرکس ۱۳ او تپوس ۱۳
او بانبه او شاهِين چه دَ هغه له جنس نه دِي ۱۴ او ټول کارغان دَ ۱۴
هغه له جنس نه ۱۵ او شُترمرغ او کماس‌مُرغ او شاحَف او باز دَ هغه ۱۵
له جنس نه ۱۶ او اُنافا کونګي او بَشوف او تنِ‌شَمس ۱۷ او قاعث او ۱۶ ۱۷
مُردارخور او کونتره ۱۸ او ډِينګ دَ هغه له جنس نه او چرګک او بناپيرک ۱۸
۱۹ او ټول ځخيدونکي چه الوزي ستاسو دِپارَ پليت دِي و دِ نه خورلي شي ۱۹
۲۰ او هر مرغه پاک به تاسو خورئ ۲۰
۲۱ هيڅ مُرداره مه خورئ ور يې کړئ مسافر له هغه چه ستا ۲۱
په دروازو کښې دي نو هغه دِ يې وخورِي يا خرڅ يې کړئ په پردي
بانډِ ځکه چه ته پاک قام يې دِپارَ دَ خداوند الله خپل مه يشوه
اوري دَ خپلي مور په شودو کښې
۲۲ لسمه حصّه له حاصلَ دَ ټول کښت خپل هغه چه پيدا کيږي ۲۲
ستا له مزکي نه کال په کال ورکړه ۲۳ او وخوره وړاندِ دَ خداوند الله ۲۳
خپل په هغه ځاي کښې چه يې غوره کړِي چه خپل نوم په کښې کيږدِي
لسمه حصّه دَ غنمو خپلو او دَ شرابو خپلو او دَ تيلو خپلو او دَ
ورنبو پيدا شويو دَ غواوُ خپلو او دَ کډو بزو خپلو چه ته زده کړي
ويره له خداوند الله خپل نه ټول عمر ۲۴ ولي هر کله چه اوږده شي ۲۴
په تا بانډِ لاره چه ته يې توان دَ پورته کولو نه لري هر کله چه لري

وِيِ له تا نه هغه ځاي چه خداوند الله ستا به ئي غوره کړِي چه خپل
۲۵ نُوم په کښې کيږدِي هر کله چه خداوند الله خپل تا مبارک کړِي ۲۵ نو
خرڅ ئي کړه په روپو سره او هميانيِ دَ روپو په لاس خپل کښې واخله
۲۶ او لاړ شه هغه ځاي ته چه خداوند الله ستا ئي غوره کړِي ۲۶ او
ولګوه روپئي په ټول هغه څه چه ستا نفس ئي غواړِي په غواؤ او په
ګډو بزو او په شرابو او په بيهوش کونکيو باندِ او په ټول هغه څه
چه خپل نفس له تا نه غواړِي او وخوره هلته وړاندِ دَ خداوند الله خپل
۲۷ او خوشحال شه ته او ستا ټبر ۲۷ او لاوِي هغه چه ستا په دروازو
کښې دي مه ئي ترکوه ځکه چه هغو له حِصّه او ميراث له تا سره نشته
۲۸ ۲۸ په اخر دَ دريو کالو کښې لسمه حِصّه دَ خپلو حاصلاتو نه
۲۹ وباسه په هغه کال کښې او په خپلو دروازو کښې ئي کيږده ۲۹ نو
لاوِي به راشي چه دَ هغه حِصّه او ميراث له تا سره نشته او مسافر
او يتيم او کُنډي چه ستا په دروازو کښې دِي او خوري به او مړيږِي
به چه مبارک کړِي خداوند الله ستا دَ خپل لاس په ټول کار کښې ؞

## پنځلسم باب

۱ ۲ ۱ په آخر دَ اوو کالو کښې دَ خلاصِي عمل وکړه ۲ او دا هغه حکم
دَ خلاصِي دي چه هر صاحب دَ قرض دِ خلاص کړِي لاس خپل له
هغه نه چه ئي قرض ورکړي وي ګاونډِي خپل له نو له ګاونډِي خپل
نه او دَ ورور خپل نه دِ نه غواړِي ځکه چه دا دَ خداوند خلاصِي
۳ ويلي کيږِي ۳ له پردِي نه ئي ته طلب کولي شي ولي هرڅه چه ستا
۴ دِي ستا په ورور باندِ نو ستا لاسونه دِ ئي خلاص کړِي ۴ ولي هاله
چه په تاسو کښې څوک فقير نه وِي ځکه چه خداوند به تا له برکت
درکړِي په هغي مزکي کښې چه خداوند الله ستا به ئي تا له درکړِي
۵ حِصّه چه ته ئي دفتر کړي ۵ هر کله چه ته. واوري آواز دَ خداوند الله
خپل چه وساتي او عمل وکړِي په دي ټولو حکمونو باندِ هغه چه زه

يُ نن. در ته حکم کوم ۶ برکت به درکړي تا له خداوند الله ستا لکه چه ۶
تا ته يُ ويلي دِي نو ته به ډيرو قامونو له قرض ورکوي او ته به له
چا نه قرض نه اخلي او ته به بادشاهي وکړي په ډيرو غيرو قامونو
باندِ او هغوي به په تا باندِ بادشاهي و نه کړي
۷ که چري په تاسو کښ يو له ورونړو ستا نه خوار وِي په يوي ۷
کښ له دروازو ستا نه ستا په مزکي کښ هغه چه در به يُ کړي تا له
خداوند الله ستا نو خپل زړه مه سختوه او مه بندوه لاس خپل له خپل
خوار ورور نه ۸ بلکه دَ هغه دَپارَ لاس خپل پرانزه او هغه له قرض ۸
ورکړه څومره چه يُ ور ته حاجت وِي ۹ پرهيز وکړه چه ستا په زړه کښ ۹
دَ شومتيا خبره تيره نه شِي چه ووائي چه اووم کال نيزدي شه کال
دَ خلاصِي او ستا سترګي په خپل ورور خوار بدي شِي او وله څه ورنه
کړي نو په تا باندِ فرياد وکړي خداوند ته نو ستا دَپارَ به ګناه شِي ۱۰ هغه ۱۰
له خامخا ورکړه او ستا زړه دِ خفه نه شِي هر کله چه ته به يُ ورکوي
ځکه چه دَدي کار له سبب نه به تا له برکت درکړي خداوند الله ستا
په ټولو کارونو ستا کښ او ټول هغو ته چه ور ته لاس خپل اوږدوِي
۱۱ چه خواران له مزکي نه تمام نه شِي دَ دي دَپارَ زه تا ته حکم کوم وايم ۱۱
چه بنه پرانزه لاس خپل په خپل ورور او په خپل خوار او په خپل
عاجز ستا په مزکي کښ
۱۲ هر کله چه خرخ کړي شِي په تا باندِ ورور ستا عبراني يا عبرانيۀ ۱۲
او شپږ کاله ستا خدمت وکړي نو په اووم کال کښ يُ پريږده چه له تا
نه آزاد وِي ۱۳ او هر کله چه آزاد يُ پريږدي له ځان خپل نه نو تش ۱۳
يُ مه پريږده ۱۴ زياتي ورکړه له کندک خپل نه او نه له درمند خپل ۱۴
نه او له کانړو خپلو نه لکه چه تا له خداوند الله ستا برکت درکړي دي
ورکړه ۱۵ او يادکړه چه ته دَ مصر په مزکي کښ مريي وي نو خداوند الله ۱۵
ستا ته خلاص کړي له دي سببَ زه تا ته نن ورخ دَدي خبري حکم کوم

١٦ ١٦ ولي چه تا ته ووائې چه زه به له تا نه نه ځم ځکه چه تا او ستا
١٧ کور دوست لري چه د هغه ښیګړه تا څخه وي ١٧ نو رمبه واخله او د
هغه په غوږ ئې په دروازه کښ ومنډه نو ترابده به ستا مرئي وي
١٨ او هم دا رنګي کار وکړه له وینځي خپلي سره ١٨ چه آزاد ئې پرېږدي له
ځان نه په تا دې ګرانه نه وي ځکه چه خدمت ئې ستا شپږ کاله کړي دي
د دوؤ مزدورانو د مزدورۍ په برابر نو برکت به درکړي خداوند الله ستا
١٩ په ټول څه کښ چه به ئې کوي ١٩ ستا ټول ورنبي پیدا شوي نر د غواؤ
او د ګډو بزو چه و زیږیږي د خداوند الله خپل دپارَ ئې مُقَدّس کړه
ورنبي پیدا شوي دَ غواؤ خپلو په عمل مه راوړه او مه ورنبي پیدا شوي
٢٠ د ګډو بزو خپلو سکڼره ٢٠ ورانډې د خداوند الله خپل کال په کال په
هغه ځاي کښ چه خداوند ئې غوره کړي ته او ستا ټبر ئې خوري -
٢١ ٢١ ولي که په هغه کښ عیب د ګډوالي وي یا ړوند وي. بل څه بد
٢٢ عیب وي نو د خداوند الله خپل دپارَ ئې مه ذبح کوه ٢٢ په خپلو دروازو
٢٣ کښ ئې خوره ناپاک او پاک ئې برابر دي لکه هوسۍ او ګاوزه ٢٣ خو
وینه ئې ته مه خوره د اوبو په شان ئې په مزکه توي کړه *

# شپاړسم باب

١ ١ د آبیب میاشت وساته او د خداوند الله خپل دپارَ فصح وکړه ځکه
چه د آبیب په میاشت کښ خداوند الله ستا په شپه کښ ته له
٢ مصر نه را وویستلي ٢ نو دپارَ د خداوند الله خپل په هغه ځاي
کښ چه خداوند ئې غوره کړي چه کېږدي په کښ نوم خپل ګډوري او
٣ غوا د فصح ذبح کړه ٣ ته له هغه سره خمیره ډوډۍ مه خوره اووه
ورځي ورسره پتیره ډوډۍ چه د خوارۍ ډوډۍ ده وخوره ځکه چه ته
په جلتۍ سره د مصر له مزکي نه ووتلي چه ته هغه ورځ د راوتلو
۴ خپله د مصر له زمکي نه ټولي ورځي د ژوندون خپل یاد لري ۴ او
اووه ورځي دې ستا په ټولو سرحدونو کښ تا څخه خمیره ډوډۍ و نه

لیدل شي او نه له غوښې نه چه تا په ورومبئ ورځې نمابنام ذبح کړي
۵ وي دَ شپې تر صبا پورې څه دِ پاتي شي ۵ اجازت نه دي تا لره چه په
بولو دروازو خپلو کښی هغه چه یَهوَه اَلله ستا به يې تا له درکړي ذبح دَ
۶ فصح وکړي ۶ بلکه په هغه ځاي کښې چه خداوند الله ستا يې غوره کړي
چه خپل نُوم په کښې کیږدي هلته دَ فصح ذبح کوه نمابنام نمر پریواته
۷ ستا دَ راوتلو په وقت له مصر نه ۷ او په هغه ځاي کښې چه غوره
يې کړي خداوند الله ستا پاخه کړه او وخوره او صبا له را وجاروزه او
۸ لاړ شه خپلو خیمو ته ۸ شپږ ورځې پتیره ډوډئ خوره او په اوومې ورځې
۹ اعتکاف دي ستا دَ خداوند الله دَپارَ په کښې هیڅ کار مه کوه ۹ اووه
هفتې دَ ځان دَپارَ وشماره له اوّل دَ لور نه په فصل کښې شروع
۱۰ وکړه چه وشماري. اووه هفتې ۱۰ او دَ هفتو اختر دَ خداوند الله خپل
دَپارَ وکړه په لاس کښې دَ خوښئ له خیرات نه لکه چه تا له
۱۱ خداوند الله ستا برکت درکړي دي ۱۱ او وړاندِ دَ خداوند الله خپل خوشحالي
وکړه ته او ستا ځوي او ستا لور او ستا مریئ او ستا وینځه او لاوي
هغه چه ستا په دروازو کښې دي او مسافر او یتیم او کونډې
چه په تاسو کښې دي په هغه ځاي کښې چه په خداوند الله ستا يې غوره
۱۲ کړي چه هلته نُوم خپل کیږدي ۱۲ او یاد کړه چه ته په مصر کښې
مریئ وي او دا قانُون وساته او عمل پرِ وکړه
۱۳ ۱۳ دَ ځان دَپارَ اووه ورځې اختر دَ جونګړو وکړه هر کله چه ته
۱۴ جمع کړې له ذرمند خپل او له ګانړئ خپلي نه ۱۴ او خوشحالي وکړه
په خپل اختـــر کښې ته او ستا ځوي او ستا لُور او ستا مریئ او
ستا وینځه او لاوي او مسافر او یتیم او کونډې هغه چه ستا په دروازو
۱۵ کښې دي ۱۵ اووه ورځې دَ خداوند الله خپل دَپارَ په هغه ځاي کښې چه
خداوند يې غوره کړي اختر وکړه ځکه چه خداوند الله ستا به ستا په ټولو
حاصلاتو کښې او ستا دَ لاس په ټولو کارونو کښې تا له برکت درکړي

تو ته به ضرور خوشحالي کوي
۱۶ ۱۶ دري ځله په کال کښ ټول نران ستا د خداوند الله ستا د وړاندِ
په هغه ځاي کښ چه ئي غوره کړي د فِطر په اختر کښ او د هفتو
په اختر کښ او د جونګړو په اختر کښ دِ حاضر شي او تش لاس دِ
۱۷ وړاندِ د خداوند نه حاضريږي ۱۷ هر يو د خپل لاس د طاقت په شان
په خير د برکت د خداوند الله ستا چه ئي تا له درکړي دي ورد کړي
۱۸ ۱۸ د ځان د پاره په ټولو دروازو خپلو کښ چه خداوند الله ستا
به ئي تا له درکړي په اندازي د فرقو خپلو کښ قاضيان او منصبداران
۱۹ مقرّر کړه نو د قانون د پاره دِ په عدل سره قضا کوي ۱۹ ته عدالت
مه وړانوه او ته د چا مخونو ته مه ګوره او بډي مه اخله ځکه چه
۲۰ بډي د هوښيارانو سترګي ړندوي او د ريښتينو خبري کږوي ۲۰ د خالص
ريښتيا پيروي وکړه چه ژوندي پاتي شي او د هغي مزکي چه خداوند الله
ستا به ئي تا له درکړي دفتري شي
۲۱ ۲۱ د ځان د پاره د خداوند الله خپل د مذبح په لور د ونو باغ مه
۲۲ لګوه هغه چه ستا د پاره ئي جوړ کړي وي ۲۲ او د ځان د پاره ستن مه
ودروه هغه څيز چه خداوند الله ستا ترِ بد ګڼي ＊

## اووه لسم باب

۱ ۱ د خداوند الله خپل د پاره غوايه يا ګډه بيزه چه په کښ څه عيب يا
بدي وي مه ذبح کوه ځکه چه په نزد د خداوند الله ستا مکروه دي
۲ ۲ که ستا په منځ کښ په يوي له دروازو ستا کښ سړي يا ښځه بيامونده
شي چه د خداوند الله ستا د سترګو د وړاندِ د شر کار کوي د هغه
۳ عهد ماتوي ۳ او لاړ شي د نورو خدايانو عبادت کوي او سجده
ور ته کوي يا نمر ته يا سپوږمۍ ته يا هر څه ته د آسمان له لښکره
۴ نه چه د هغه حکم ما ور ته کړي نه دي ۴ او ته خبر کړي شي او
واوري او په ښه شان تپوس وکړي او ګوره چه ريښتيا وي او خبره

یقیني وِي چه دا مکروه کار په اسرائیلو کښې شوي دي ۵ نو ته هغه ۵
سړي یا هغه ښځه چه ئې دا بدکار وکړی دي خپلو دروازو ته ئې راوله هغه
سړي یا هغه ښځه او سنګسار ئې کړه په کاڼو تر هغه چه مړه شي
۶ هغه چه قتلولي شي دَ دوو شاهدانو یا دَ دریو شاهدانو په خولي ۶
دِ قتل کړي شي دَ یو شاهد په خولي دِ قتل نه کړي شي ۷ دَ هغه ۷
دَ قتل دَپاره دِ دَ شاهدانو لاسونه وړومبي وِي پس له هغو لاسونه
دَ ټولو قامونو نو شر به له خپل مینځ نه ورک کړي
۸ او که خبره سخته شي په عدالت کښې په مینځ دَ وینو او وینو ۸
کښې یا په مینځ دَ دَعوي کښې یا په مینځ دَ وهلو او وهلو کښې دَ جګړو
له خبرو نه ستا په دروازو کښې نو هغه ځاي ته چه غوره ئې کړي
خداوند الله ستا پاسه او وخیژه ۹ او کوهینانو لاویانو له او قاضي له ۹
چه په هغو ورځو کښې وِي لاړ شه او پوښتنه وکړه نو تا ته به دَ
عدالت خبره وښیي ۱۰ نو به شان دَ هغي فیصلي چه تا پرِ خبر کړي له ۱۰
هغه ځاي نه چه خداوند غوره کړي عمل وکړه او بیدار شه چه عمل
وکړي په ټول هغه څه چه تا ته ئې ښیي ۱۱ په شان دَ هغه شریعت ۱۱
چه ئې تا نه ښیي او عدالت هغه چه تا ته ئې وائي عمل پرِ وکړه
له هغي خبري نه چه تا پرِ خبر کړي ښي او کینړ ته مه جاروزه -
۱۲ او هغه سړي چه دَ سرکښئ عمل کوي دَ کوهین چه هلته ولاړ ۱۲
وِي چه خدمت وکړي دَ خداوند الله ستا او دَ قاضي نه اوري نو هغه
سړي دِ قتل کړي شي نو شر به له اسرائیل نه ورک شي ۱۳ نو ټول ۱۳
قامونه به اوري او وېرېږي به او پس له هغه به سرکښي نه کوي
۱۴ هر کله چه هغې مزکې له راشي چه خداوند الله ستا به ئې تا له ۱۴
درکړي او دفتر دِ کړي او په کښې اوسیدلي نو که ته ووایي چه دَ نورو
قامونو په شان چه له ما نه چارچاپېره دي زه به په خپل سر بادشاه
ودروم ۱۵ نو ته خامخا ودروه په خپل سر بادشاه چه ئې غوره کړي ۱۵

خداوند الله ستا دَ خپلو ورونړو له مينځ نه په خپل سر بادشاه ودروم
تا ته اجازت نه دي چه ته ودروي په سر خپل پردي سړي هغه ستا
۱۶ ورور نه دي ۱۶ ولي دَ ځان دپارَ دِ آسُونه نه زياتوِي او نه دِ قام مصر
ته استوِي چه زيات کړِي اسونه ځکه چه خداوند تاسو ته ويلي دِي چه
۱۷ بل ځل به دي لاري کښ هيڅڪري مه جاروزِئ ۱۷ او دَ ځان دپارَ دِ ډيري
ښځي نه کوِي هسي نه وِي چه زړه ئي وجاروزِي او سپين زر او سره
۱۸ زر دِ ځان له ډير نه زياتوي ۱۸ او هر کله چه دَ بادشاهِي په تخت
کښيني نو دَ ځان دپارَ دِ دَدي شريعت نسخه په کتاب کښ له کوهينانو
۱۹ نه او لاويانو نه وليکي ۱۹ نو هغه نسخه به وِي او ټولي ورځي دَ ژوندون
به په کښ لولِي چه له خداوند الله خپل نه ويريدل زده کړِي او ټولي
۲۰ خبري دَدي شريعت او دَ دي حقونو وساتي چه پرِ عمل وکړِي ۲۰ چه
په خپلو ورونړو باندِ ئي زړه غرور ونه کړِي او له حکم نه ښي طرف
کيڼي طرف ته و نه جاروزِي چه دي او دَده زامن دَ خپلي بادشاهِيِ
ورځي اوږدي کړِي دَ اسرائيل په مينځ کښ *

اتلسم باب

۱ ۱ دَ کوهينانو لاويانو دَ ټولي فرقي دَ لاوِي دپارَ به حصّه او ميراث
نه وِي دَ اسرائيل سره دَ اور سوي قربانِئ دَ خداوند او هغه به په ميراث
۲ کښ خورِي ۲ نو دَ ورونړو خپلو په مينځ کښ به ده لرهِ ميراث نه وِي
هم خداوند دَ دوي ميراث دي لکه چه ور ته ئي ويلي وُو
۳ ۳ او له قام نهَ هغه څوک چه ذبح کوِي ذبح دَ غواوِي که دَ
ګډو بيزو حق دَ کوهينانو به دا وِي ولَي او جامي او لَوي دِ کوهين
۴ له ورکوِي ۴ او اوّل دَ غنمو خپلو او دَ شرابو خپلو او دَ تيلو خپلو او
۵ اوّل وړي دَ ګډو بيزو خپلو ته نه وله ورکړه ۵ ځکه چه خداوند الله
ستا دَي غوره کړي دي ستا له ټولو فرقو نه چه هغه او ځامن ئي په
نُوم دَ خداوند ودريږِي چه خدمت وکړِي

۶ ۶ او هر کله چه لاوي له يوې دروازو ستا نه چه هلته ئي استوګنه
کوله له ټول اسرائيل نه راشي او په ټولي مينې دَ ځان خپل هغه
۷ ځاي ته چه خداوند به ئي غوره کړي راشي ۷ او په نُوم دَ خداوند الله خپل
به شان دَ ټولو ورونړو خپلو لاويانو چه هلته دَ خداوند دَ وړاندِ ولاړ
۸ دِي خدمت وکړي ۸ حصّې به برابرې خوري بي له هغي نه چه دَ پلار
نيکونو له ميراث نه ئي خوځوي

۹ ۹ هر کله چه په هغي مزکي کښ چه خداوند الله ستا به ئي تا له
درکړي داخل شي نو په شان دَ هغو قامونو مکروه کارونه کول مه
۱۰ زده کوه ۱۰ په تاسو کښ دِ څوک بيا نه موندي شي هغه چه ځوي
خپل يا لُورخپله په اور کښ تيروي او نه غيب ګويه او نه فال اچونکي
۱۱ او نه پاړُو او نه ساحر ۱۱ او نه تعويذ کونکي او نه هغه چه پوښتنه
۱۲ کوي له پيري نه او نه رَمّال او نه په هُوده کونکي دَ روحونو ۱۲ ځکه چه
په نزد دَ خداوند هوڅوک چه دا کار کوي مکروه دي او دَدي مکروهاتو له
۱۳ سبب به ئي يَهوَهٔ الله ستا له مخې نه لري کړي ۱۳ دَ خداوند الله خپل
۱۴ دَ وړاندِ ته کامل شه ۱۴ ځکه چه هغه قامونه چه به ئي وارث شي
دَ فال اچونکو او دَ غيب ويونکيو اوري او هر څه چه ته ئي نو خداوند الله
ستا له په دي شان اجازت نه درکوي

۱۵ ۱۵ خداوند الله ستا به ستا دَپارَ ستا له مينځ نه ستا له ورونړو
۱۶ نه نبي ځما په شان ودروي تاسو دَ هغه اورئ ۱۶ په شان دَ ټول هغه
څه چه خداوند الله خپل نه په حوريب کښ دَ جماعت په ورځ دِ وغوښتل
ويل ئي چه دوبارَ به خبره دَ خداوند الله خپل وا نه ورم او دا لوي اور
۱۷ به هم و نه ګورم چه زه مر نه شم ۱۷ ما ته خداوند وويل چه ښه
۱۸ دِي هغه څه چه ئي وويل ۱۸ دَدوي دَپارَ به دَدوي دَ ورونړو له مينځ
ستا په شان نبي ودروم او خپل کلام به دَ هغه په خولې کښ واچوم
نو په ټول هغه څه چه زه به ورته حکم کوم دوي ته به ئي وائي۔

۱۹ ۱۹ او داسي به وشي چه څوک چه خما خبري نه اوري هغه چه خما په نوم
۲۰ به ئي وائي نو زه به ئي طلب تر کوم ۲۰ او هغه نبي چه سرکښي وکړي
خما په نوم خبري وکړي هغه خبري چه ما ور ته دَ ويلو حکم کړي نه وه
يا هغه چه دَ نورو خدايانو په نوم خبري کوي نو هغه نبي دِ مړ کړي شي
۲۱ ۲۱ که ته په خپل زړه کښ ووائي چه هغه خبره په څه رنګ وپيژنم چه
۲۲ خداوند ويلي نه دَه ۲۲ نو چه نبي په نوم دَ خداوند ووائي او و نه شي يا تر
سره نه شي نو دا هغه کلام دي چه خداوند ويلي نه دي بلکه په سرکښئ
سره نبي ويلي دَي نو له هغه نه مه ويريږه *

# نولسم باب

۱ ۱ هر کله چه خداوند الله ستا پريکړي قامونه هغه چه خداوند الله ستا
دَ هغوي مزکه تا له درکړي او ته ئي دفتري شي او استوګنه کوي دَ هغو
۲ په ښهرونو کښ او دَ هغو په کورونو کښ ۲ دَ ځان دَ پار دري ښهرونه
دَ خپلي مزکي په مينځ کښ خداوند الله ستا به ئي تا له درکړي چه ته
۳ ئي دفتري شي بيل کړه ۳ ته دَ خپل ځان دَ پار لار جوړه کړه او حدونه دَ
مزکي خپلي چه خداوند الله ستا به ئي ستا دَ پار ميراث کړي دري ځايه
۴ کړه چه هر خوني هغو ته ورتښتي ۴ او دا حکم دَ خوني دَي هغه چه
هلته تښتي نو ژوندي به پاتي شي څوک چه په خطا سره خپل ګاونډي
۵ ووژني او هغه پرون او پخوائي ورسره دُښمني نه لرله ۵ لکه چه څوک له
ګاونډي خپل سره دَ لرګو پريکولو دَ پار ځنګل ته لاړ شي نو لاس ئي
په تبر سره ګذار وکړي چه ونه پريکړي او تبر ئي له لاستي نه ووزي
او ګاونډي ئي پر ولګيږي چه مړ شي نو هغه به له هغو ښهرونو نه يو ته
۶ وتښتي نو ژوندي به وي ۶ هسي نه چه دَ قتل شوي وارثان چه زړه
ئي تاؤ وکړي په خوني پسي لاړ شي او چه لار اوږده وي او وله ورشي
او وئي وژني او هغه لائق دَ مرګ نه وه ځکه چه هغه ورسره پرون او
۷ پخوائي دُښمني نه لرله ۷ دَدي دَ پار زه تا ته حکم کوم وايم چه بدي

٨ ښهرونه دَ ځان دَپارَ بیل کړه ٨ او که خداوند الله ستا سرحدونه ستا
ارث کړي لکه چه يې ستا له پلار نيکونو سره قسم کړي دي او ټول
مزکه تا له درکړي هغه چه يې ويلي وُو چه ستا پلار نيکونو له به يې
٩ ورکړي ٩ هر کله چه دا ټول حکمونه وساتي چه عمل پرِ وکړي چه زه يې تا ته
نن حکم کوم چه ته خداوند الله خپل سره محبّت وکړي او ټول موده دَ
هغه په لارو باندِ ځي نو په دي دري ښهرونو باندِ دَ ځان دَپارَ دري
١٠ نور هم زيات کړه ١٠ چه ستا دَ مزکي په مينځ کښ هغه چه خداوند الله ستا
به يې تا له دفتر درکړي وِيني دَ بيگناه توي نه شي چه خون يې په تا شي
١١ ١١ ولي هر کله چه څوک له خپل گوانډي سره دُښمن وي او ورته پټ
شي او ورپاسي او سخت يې ووهي چه مړ شي بيا له هغو ښهرونو نه يو ته
١٢ ونښتي ١٢ دَ هغه دَ ښهر مشران دِ واستولي شي او له هغه ځاي نه دِ يې
١٣ بوزي او دَ وينو دَ وارث په لاس دِ يې ورکړي چه مړ شي ١٣ ستا سترگي
دِ په هغه رَحم نه کوي ته دَ بيگناه خُون له اسرائيل نه لري کړه نو ستا
١۴ دَپارَ به ښيگړه وِي ١۴ بُولـه دَ گوانډي خپل چه پخوانو ستا دَدفتر په
مزکي کښ جوړه کړي دَه هغه چه خداوند ستا به يې تا له درکړي چه به يې
دفتر کړي مه لري کوه
١٥ ١٥ يو شاهد دِ په سړي باندِ په هيڅ گناه کښ او هيڅ خطا کښ له
ټولو خطاؤ نه هغه چه دي خطا کيږي نه ودريږي دَ دوؤ شاهدانو په خولي
١٦ يا دَ دريؤ شاهدانو په خولي دِ دعوي ودريږي ١٦ هر کله چه دَ دروغو شاهد
١٧ په سړي ودريږي چه پرِ دَ بدئ شاهدِي لي ١٧ هغه دوه سړي چه دَ
هغو په مينځ کښ جگړه دَه دَ خداوند دَ وړاندِ او دَ کوهينانو او دَ قاضيانو
١٨ دَ وړاندِ هغوي چه په هغو ورځو کښ وِي و دِ دريږي ١٨ نو که قاضيانو
په ښه شان سره تفحص وکړ نو گوره که شاهد دروغژن شاهد وه
١٩ چه په ورور خپل باندِ يې دَ دروغو شاهدِي لي وه ١٩ نو داسي کار ور
سره وکړئ لکه چه يې نيت کړي وه چه له ورور خپل سره وکړي چه بدي

۲۰ له خپل مينځ لري کړئ ۲۰ او باقي خلق ئي واوري نو وويريږي او دوباره
۲۱ داسي بدکار ستا په مينځ کښ ونه کړي ۲۱ ستا سترکي دِ رحم نه کړي
دَ ځان بدل ځان دَ سترکي بدل سترګه دَ غاښ بدل غاښ دَ لاس
بدل لاس دَ پښي بدل پښه دِ وشي ٭

## شلم باب

۱ ا هر کله چه ته دَ جنګ دَپارَ خپل دُشمن ته ووزي او اسونه او
ګاډي قام وګوري چه له تا نه ډېر دي نو ته له هغو نه مه ويريږه
ځکه چه خداوند الله ستا چه ته ئي دَ مصر له مزکي نه را وخيژولي
۲ له تا سره دي ۲ او هر کله چه تاسو جنګ ته نيزدي شئ نو کوهين دِ
۳ وړاندِ شي او قام سره دِ خبري وکړي ۳ او ورته دِ ووائي چه اي اسرائيلو
واورئ تاسو نن ورځ دَ جنګ دَپارَ دُښمن ته نژدي شوئ ستاسو
زړونه دِ کمزوري نه شي مه بي زړه کيږئ او مه ويريږئ او مه هيبتناک
۴ کيږئ دَ هغو دَ وړاندِ ۴ ځکه چه خداوند الله ستاسو له تاسو سره ځي چه
ستاسو له دُښمنانو سره ستاسو له لوريه جنګ وکړي چه تاسو تړ
۵ خلاص کړي ۵ بيا دِ منصبداران قام ته خبري وکړي ودِ وائي چه څوک
دي هغه سړي چه ئي نوي کور جوړ کړي دي او خاص کړي ئي نه دي لاړ
دِ شي خپل کور ته دِ لاړ شي او ودِ جاروزي هسي نه وي چه په جنګ
۶ کښ مړ شي نو بل سړي ئي خاص کړي ۶ او څوک دَي هغه سړي چه
انګور ئي کرلي وي او ميوه ئي تر اوسه نه وي لاړ دِ شي ودِ جاروزي
خپل کور ته هسي نه وي چه په جنګ کښ مړ شي او بل سړي تر
۷ واوړي ۷ او څوک دي هغه سړي چه ښځه ئي کوژدن کړي وي او
اخيستلي ئي نه وي لاړ دِ شي و دِ جاروزي هسي نه وي چه په
۸ جنګ کښ مړ شي او بل سړي ئي واخلي ۸ بيا دِ منصبداران قام
ته خبري وکړي ودِ وائي چه څوک دي هغه سړي ويريدونکي او بي زړه
چه لاړ شي او وجاروزي خپل کور ته هسي نه وي چه دَ هغه دَ زړه

په شان دَ وروڼو زړونه ئې ويلي شي ۹ او هرکله چه منصب داران ۹
دَ قام له خبرو نه وزګار شي نو دَ قام په سرکشئ دَ سرداران دَ لښکرو
ودروي ۱۰ هرکله چه ښهر ته نيزدې شي چه ورسره جنګ وکړي نو ۱۰
دَ صلحي دَپارَ ئې وبوله ۱۱ نو که دَ صلحي دَپارَ ئې تا له ځواب درکړه او ۱۱
ستا دَپارَ ئې دروازې پرانتلې نو ټول قام چه په کښې موجود وي ستا
دَپارَ به ماليه اداکوي او ستا مريئتوب به کوي ۱۲ او که تا سره صلح ۱۲
نه کوي بلکه له تا سره جنګ کوي نو ګير ئې کړه ۱۳ او هرکله چه ۱۳
خداوند الله ستا ئې ستا په لاس کښې درکړي نو ټول نارينه ئې په تيرې
توري سره ووژنه ۱۴ خو ښځې او هلکان او څاروي او هرڅه چه په ښهر ۱۴
کښې وي ټول لوټ ئې واخله نو دَ ځان دَپارَ ئې لوټ کړه او لوټ دَ
دُښمن خپل هغه چه تا له يهوَه الله ستا درکړي دي خوره ۱۵ هم په دې ۱۵
شان له ټولو ښهرونو سره چه له تا نه ډير لرې وي هغه چه دَدې
قامونو له ښهرونو نه نه وي کار وکړه ۱۶ او له ښهرو نه دَدې قامونو ۱۶
چه خداوند الله ستا به ئې تا له ميراث درکړي نو نه هيڅ ساه اخستونکي
له هغه نه مه پريږده ۱۷ بلکه ته حِتيان او اَموريان او کِنعانيان او ۱۷
فرزيان او حوويان او يبوسيان لکه چه خداوند الله ستا تا ته حکم
کړي دي بيخي هلاک کړه ۱۸ چه دَ ټولو مکروهاتو خپلو په شان کار ۱۸
کول تاسو ته و نه ښيي هغه چه هغوي وکړل دَ خپلو خدايانو دَپارَ
نو خداوند الله خپل ته به ګنهګار شئ
۱۹ هرکله چه ښهر ډيرې ورځې دَ جنګ دَپارَ ته ګير کړي چه ۱۹
ئې واخلې نو ونې ئې په تبر وهلو سره مه خرابوه ځکه چه ته له هغه
نه خوړلې شې نو ته ئې مه پريکوه ځکه چه دَ ميدان ونې دَ انسان
دي څه چه ستا دَ وړاندې راورې شي په محاصرې کښې
۲۰ او هغه ونه چه ئې ته پيژنې چه هغه ونه دَ خوړلو نه ده نو ۲۰
ته ئې خراب کړه او پرې ئې کړه او ښهر ته سنګر جوړ کړه چه له تا

سره جنګ کړي تر هغه چه ئې واخلي ❊

# يو ويشتم باب

۱ آ هرکله چه په هغې مزکې کښې چه خداوند الله ستا به ئې تا له درکړي
چه ته به ئې دفتر کړې وژلي شوي بياموندي شي چه په ميدان پروت
۲ وي معلوم نه شي چه دي چا وژلي دي ۲ نو ستا مشران او ستا
قاضيان دې ووزي تر هغو ښهرونو چه ګير چاپير له وژلي شوي نه
۳ دي کچ دې ئې کړي ۳ نو کوم ښهر چه وژلي شوي ته نيزدي دي له مشرانو
دَ هغه ښهر نه دِ سخئ دَ غوا واخلي چه په هغې کار کړي شوي نه
۴ وي او په جغ کښې رانښکلي شوي نه وي ۴ او مشران دَ هغه ښهر
دِ هغه سخئ بهيدونکي خوړ ته راولي چه نه په کښې قلبه کړي شوي
وي او نه په کښې کرکړي شوي وي او هلته په خوړ کښې دِ دَ سخئ
۵ ګردن مات کړي ۵ بيا دِ کوهيان بني لاوي ور وړاندِ شي ځکه چه
دوي خداوند الله ستا غوره کړي دي چه خدمت ئې وکړي او دَ خداوند
په نوم برکت ورکړي او دَ هغو دَ ويلو په شان به ټولي جګړې او
۶ ټول وهل خلاصيږي ۶ او ټول مشران دَ هغه ښهر چه وژلي شوي
ته نيزدي دي خپل لاسونه دِ وويځي په سخئ باندِ چه په خوړ کښې
۷ ئې ګردن مات کړي شوي دي ۷ او ناري دِ کړي او و دِ وائي چه ځمونږ
۸ لاسونو دا وينې نه دي توي کړي او ځمونږ سترګو نه دي ليدلي ۸ اي
خداوند خپل تمام اسرائيل هغه چه تا خلاص کړي دي وبخښه او دَ
بې ګناه وينې دَ خپل تمام اسرائيل په مينځ کښې مه ږده نو دوي به
۹ دَ خون نه خلاص شي ۹ نو هرکله چه دَ خداوند دَ سترګو دَ وړاندِ ته
ښه وکړي نو دَ بې ګناه خون به له خپل مينځ نه ورک کړي
۱۰ ۱۰ هرکله چه دَ خپلو دښمنانو دَ جنګ دَ پاره ووزي او خداوند الله
۱۱ ستائې ستا په لاس کښې درکړي او ته ئې په قيد سره قيد کړي ۱۱ او
په قيديانو کښې خوب صورته ښځه ويني او ورسره مينه وکړي او دَ

بښځي کولو دَپارَ ئې واخلې ۱۲ چه ته ئې خپل کور ته بوزې نو سر ئې وخرېه ۱۲
او نوکونه ئې پرېکړه ۱۳ او دَ هغې دَ قيد زروکي ترِ وکاږه او ستا په کور ۱۳
کښې دِ کښېنې او تر يوې مياشتې دِ خپل پلار او خپله مور وژاړي
پس له هغې ورسره کور وکړه او ته ئې څښتن شه نو ستا ښځه به
شي ۱۴ که چرې ته ورسره خوښ نه يې نو خپلې مخې ته ئې پرېږده په روپو ۱۴
ئې هيچرې مه خرڅوه او نه له هغه نه سوداگرئِ کوه ځکه چه تا رَسوا
کړې ده

۱۵ هرکله چه دَ سړي دوه ښځې وي يوه روئيداره او بله موتړه وي ۱۵
او روئيداري او موتړي دَده دَپارَ زامن راوړي وي نو که چرې ورنبي
ځوي د موتړي وي ۱۶ نو چه په زامنو خپلو ويشي هغه څه چه دَده وي ۱۶
ده له اختيار نه دي چه ورنبيَ ځوي دَ روئيداري وراندِ کړي په
ورنبي ځوي دَ موتړي ۱۷ بلکه دَ موتړي ځوي دِ ورنبيَ وگڼي چه ۱۷
دوچنده حصه له ټول هغه څه نه چه دَ ښځه وي ور دِ کړي ځکه
چه دي ئې دَ قوت اول دي دَ ورنبي والي حق دَده دي

۱۸ که چرې دَ سړي ځوي ياغي او سرکښ وي چه دَ خپل پلار ۱۸
خبره او دَ خپلې مور خبره نه اوري او که آدب ورکړي او دَ دوي
وا نه وري ۱۹ نو خپل پلار او خپله مور دِ ئې ونيسي او دَ خپل ښهر ۱۹
مشرانو له دِ ئې راولي او دَ هغه دَ کور دروازې له ۲۰ او دواړه دِ ۲۰
دَ خپل ښهر مشرانو ته ووائي چه داځمونږ ځوي ياغي او سرکښ دي
ځمونږ خبره نه آوري او هغه بدخرڅ او بدمست دي ۲۱ نو ټول سړي ۲۱
دَ هغه ښهر دِ ئې په کاڼو سره سنگسار کړي چه مړ شي نو شر به له
خپل مينځ نه لرې کړئِ او ټول اسرائيل به ئې واوري او وبه ويرېږي

۲۲ هر کله چه دَ سړي گناه وَه چه دَ مرگ لايق وي او مړ کړي شي ۲۲
او تا په غرغره ځوړند کړ ۲۳ نو ته دَ هغه په جسته شپه په غرغره مه ۲۳
تيروه بلکه په هم هغې ورځې ئې خښ کړه ځکه چه ځوړند له الله نه

لعنت کړي دَي نو چه ستا زمکه پليته نه شِي هغه چه خداوند الله
ستا د فتر مه پليتوه تا له به ئي درکړي *

## دوه ويشتم باب

۱ آ دَ خپل ورور غوايه يا گډه چه بي‌لارې شِي مه گوره چه ترِ وتښتي
۲ بلکه ضرور خپل ورور ته ئي وجارباسه ۲ او ستا ورور که تا ته
نزدي نه وِي يا ئي ته نه پيژنې نو ته ئي خپل کور ته راوله او تا څخه
دِ وِي تر هغه چه ستا ورور ئي وغواړي نو بيا ئي ورو جارباسه -
۳ ۳ او له خره سره ئي هم داسي وکړه او له زړوکي سرهِ ئي هم داسي
وکړه او دَ خپل ورور له ټول ورک شوِي سره داسي وکړه چه ترِ ورک
۴ شِي او ته ئي بيامومي تا له اختيار نه دي چه ته ترِ پټ شي ۴ دَ
خپل ورور خر او غوايه ته ئي چه په لارې کښ پريوتلي وِي مه گوره
بلکه ضرور له هغه سره ئي پاڅوه
۵ ۵ نه دِ وِي دَ سړي زړوکي په ښځي باندِ او سړي دِ دَ ښځي زړوکي
نه آغوندِي ځکه چه هرڅوک چه دا کار کوِي په نزد دَ يَهوَهْ الله ستا
مکروه دي
۶ ۶ هر کله چه ستا دَ وړاندِ دريڅنه شِي دَ مرغه جاله په لارې
کښ په څه ونې کښ يا په مزکي باندِ چه په کښ بچي وِي يا هاگئ
وِي او مور ئي په بچو يا په هاگيو ناسته وِي نو ته ئي مورسره
۷ له بچو مه نيسه ۷ مور ئي ته ضرور پريږده او دَ ځان دَپارَ
بچي ئي واخله چه ستا ښبگړه وشِي او ورځي دِ اوږدي شِي
۸ ۸ هر کله چه ته نوي کور جوړوي نو په خپل چت پړدي جوړي
کړه هسي نه وِي چه ته خون په خپل کور باندِ را نه ولي چه څوک
۹ ترِ پريوزِي ۹ دوه قسمَ په انگورو خپلو کښ مه کړه هسي نه وِي
چه ميوه دَ تخم چه تا کرلي وِي او حاصل دَ انگورو ناپاک شِي -
۱۰ ۱۰ په غوايه او په خره يو ځاي يوي مه کوه ۱۱ زړوکي چه ورِيِ او

سپېږېي سره کېږد وې مه اغونده
۱۲ په څلورو طرفونو دَ زړوکي خپل هغه چه ته به ئي اغوندي ۱۲
جالر ولګوه
۱۳ هرکله چه سړي ښځه واخلي او چه ورسره کور وکړي او بده ۱۳
ئي کړي ۱۴ او دَ هغي په باب کښ دَ تور خبري وکړي او بدنامي پېداولي ۱۴
او ووائي چه دا ښځه ما اخستلي وه او هرکله چه زه ورته نږدي
شولم نو ما دا بکره بيا نه موندله ۱۵ دَ پېغلي پلار او مور دِ نښي ۱۵
دَ بکارت دَ هغي دِ واخلي او را دِ وړي دَ ښهر مشرانو له دروازي
ته ۱۶ او دَ پېغلي پلار دِ مشرانو ته ووائي چه دي سړي له مِ خپله ۱۶
لُور په ښځي‌توب سره ورکړي وه نو ده بده کړله ۱۷ او دا دي دَ هغي ۱۷
په باب کښ دَ تور خبري کوي وائي چه ستا په لُور کښ ما بکروالي
بيا نه موند او دا څما دَ لُور دَ بکروالي نښه ده او دَ ښهر دَ مشرانو
دَ وړاندِ دِ زړوکي وغوړوي ۱۸ نو دَ هغه ښهر مشران دِ هغه سړي ۱۸
ونيسي او سزادِ ورکړي ۱۹ او سل مثقالَ سپين زر دِ پرِ تاوان کړي ۱۹
او دَ پېغلي پلار له دِ ورکړي څکه چه دَ اسرائيل بکره ئي بدنامه کړي
وَه نو دَده ښځه به وي او ټول عمر به دَده طاقت نه وِي چه ئي
پرېږدِي ۲۰ ولي که دا خبره رښتيا وِي دَ پېغلي بکروالي بيا نه موندي ۲۰
شِي ۲۱ نو پېغله دِ دَ پلار دَ کور دروازي ته بوزي او دَ هغي دَ ۲۱
ښهر سړي دِ ئي په کاڼو سنګساره کړي څوچه مړه شِي څکه چه
دي په اسرائيل کښ دَ خپل پلار په کور کښ بدکار دَ خيلي
زنا کړي وه نو ته شر له مينځ خپل نه لري کړه
۲۲ که چري څوک سړي له ښځي سره ملاست بيا موندي شِي چه ۲۲
خښتن لرِي نو هغه سړي ملاست له ښځي سره او ښځه دواړه دِ
ووژلي شِي نو له اسرائيل نه ته شر لري کړه
۲۳ که چري پېغله باکره له سړي سره کوژدن شوي وِي نو بل ۲۳

۲۴ سړي ئې په ښهر کښې بیاموږي او ور سره څملي ۲۴ نو دواړه دِ دَ هغه
ښهر دروازي ته راولي او په کاڼو سره دِ ئې سنګسار کړي څو چه
دواړه مړه شي پېغله دَ دي دَپارَ چه په ښهر کښې وه او شور ئې ونه
کړ او سړي دَ دي دَپارَ چه ده دَ خپل ګاونډي ښځه وشرموله نو له
۲۵ خپل مینځ نه ته شر لري کړه ۲۵ ولي که چري سړي پېغله کوژدن شوي
په میدان کښې بیاموږي او هغه سړي ئې په زور ونیسي او ورسره څملي
۲۶ هغه سړي چه ورسره څملاستلي وِي یواځي دِ مړ شي ۲۶ او پېغله هیڅ
مه کوه په پېغلي باندِ دَ مرګ ګناه نشته بلکه لکه چه سړي پاڅي په
۲۷ خپل ګاونډي او وئې وژني دا کار په دي شان دَي ۲۷ ځکه چه ده په میدان
کښې دا بیاموندله نو پېغلي کوژدن شوي شور وکړ خو څوک نه وُو چه ئې
خلاصه کړي
۲۸ ۲۸ که چري سړي پېغله باکره بي کوژدني بیاموږي او وئې نیسي او
۲۹ ور سره څملي نو ونیولي شي ۲۹ هغه سړي چه ورسره ملاست وِي دَ
پېغلي پلار له دِ پنځوس مثقالَ سپین زر ورکړي او دا به دَ هغه ښځه
شي ځکه چه ده هغه شرمولي دَه او ټول عمر به دَده اختیارنه وِي
چه ئې پرېږدي
۳۰ ۳۰ څوک دِ دَ خپل پلار ښځه نه اخلي او دَ خپل پلار لمن دِ نه اړوي*

## درویشتم باب

۱ ۱ خصي کړي یا آلت پرېکړي دِ دَ خداوند په مقتدیانو کښې نه داخلېږي
۲ ۲ حرامي دِ دَ خداوند په مقتدیانو کښې نه داخلېږي ترلسمي پیړئ دِ دَ
۳ هغه دَ خداوند په مقتدیانو کښې نه داخلېږي ۳ نه عموني او نه موابي
دِ دَ خداوند په مقتدیانو کښې داخلېږي ترلسمي پیړئ دِ یو له هغو نه
۴ تر ابدَ دَ خداوند په مقتدیانو کښې نه داخلېږي ۴ دَ دي دَپارَ چه دوي
له مصر نه ستاسو دَ وتلو په وقت په لاري کښې له ډوډئ او اوبو
سره ستاسو مخي له رانه غله او دا چه دوي بَلعام څوی دَ بعور له

پَتُور دَ ارام‌النهرين نه په مزدوري سره را وباله تا له چه په تا لعنت
وکړي ۵ ولي خداوند الله ستا و نه غوښتله چه دَ بَلعَام واوري ۵
نو ستا دَپارَ خداوند الله ستا هغه لعنت په برکت سره بدل کړ ځکه
چه خداوند الله ستا نه ئي دوست ولرلي ۶ په ټولو ورځو خپلو کښ تر ۶
ابدَ پوري دَدوي سلامتيا مه غواړه او نه دَدوي خيريت ۷ له آدومي نه ۷
کرکه مه کوه ځکه چه هغه ستا ورور دَي له مصري نه کرکه مه کوه
ځکه چه ته دَ هغه په مزکي کښ مسافر وي ۸ په دريمي پيړيَ کښ ۸
هغه اولاد چه له هغو نه پيدا شي دَ خداوند په مقتديانو کښ دِ
داخل شي

۹ هر کله چه لښکر ستا په دُښمن وروزي نو له هرَ بدَ څيز ۹
نه ځان وساته ۱۰ که چري په تاسو کښ سړي وي چه اتفاقاً دَ شپي ۱۰
پَليت شي نو له لښکر نه دِ بهر لاړ شي په لښکر کښ دِ نه ننوزي
۱۱ او داسي به وشي چه نماښام نه نژدي دِ په اوبو ولامبي او نمر ۱۱
پريواته دِ داخل شي په لښکر کښ ۱۲ او ستا دَپارَ دِ بهر له لښکر ۱۲
نه ځاي وي چه ته هلته بهر وروزي ۱۳ او ستا له اسباب سره ۱۳
تا څخه دِ کهيئ وي نو داسي به وشي چه ته بهر کښيني په هغي سره
دوغل وکړي او چه راجاروزي نو هغه چه له تا نه ووزي پټ ئي کړي
۱۴ ځکه چه ستا خداوند الله ستا دَ لښکر په مينځ کښ گرزيدونکي دي ۱۴
چه تا بچ کړي او ستا په مخي کښ ستا دُښمنان درکړي نو ستا لښکر به
پاک شي چه دَ څه څيز پَليتي په تا کښ ووينِي نو له تا نه وگرزي
۱۵ مريي چه له خپل خاوند نه تا نه وتښتي ته ئي خپل خاوند ته مه ۱۵
سپاره ۱۶ ستا په مينځ کښ دِ تا څخه اوسي په يوي کښ له دروازو ستا ۱۶
په هغه ځاي کښ چه ئي غوره کړي چه دَده دَپارَ ښه وِي ته پرِ ظلم
مه کوه

۱۷ دَ اسرائيل له لُونړو نه دِ زناکاره نه وِي او نه دِ له بني‌اسرائيلو ۱۷

۱۸ نه مفعول وِي ۱۸ ته دَ زناکار مزدورِي او دَ سپي بيه دَ هيڅ نذر دَپارَ
دَ خداوند الله خپل په کور کښ مه داخلوه څکه چه دا دواړه دَ خداوند
۱۹ الله ستا په نزد مکروه دِي ۱۹ خپل ورور له په سُود سره قرض مه
ورکوه سُود دَ سپينو زرو يا سُود دَ خوراک يا سُود دَ څه څيز له هغه
۲۰ نه چه قرض ورکولي شي په سُود سره ۲۰ پردِي له په سُود قرض ورکوه
ولي خپل ورور له په سُود سره قرض مه ورکوه چه يَهُوَه الله ستا
تا له برکت درکړِي په ټول هغه څه چه ستا لاس ور ته اوږدېږي
په هغي مزکي کښ چه ته ور داخليدونکي ئي چه دِ قبض ئي کړِي
۲۱ ۲۱ هرکله چه تا دَ خداوند الله خپل نذر ومنه نو په اداکولو کښ
ئي ډِيل مه کوه څکه چه خداوند الله ستا به ئي له تا نه ضرور غواړِي
۲۲ نو به تا باندِ به گناه شي ۲۲ ولي که تا منع کړِي وه چه نذر ومني
۲۳ نو گناه به په تا نه وِي ۲۳ څه چه ستا له شوندو نه ووتل وئ
ساته او پرِ عمل وکړه لکه چه تا دَ خداوند الله خپل دَپارَ په خوښئِ سره
نذر کړي دي لکه چه ستا دَ خولي وتلي دِي
۲۴ ۲۴ هر کله چه دَ خپل گاونډِي په انگورو کښ ننوزي نو ته ئي
۲۵ په مړه گيډه انگور وخوره ولي په خپل لوښي کښ ئي مه اچوه ۲۵ هرکله
چه ته دَ خپل گاونډِي په فصل کښ ننوزي نو په خپل لاس سره
وږِي مات کړه ولي دَ خپل گاونډِي په فصل لور مه هسکوه ÷

## څليريشتم باب

۱ ۱ هرکله چه سړي ښځه واخلي او ور سره واده وکړِي نو که چرې
ده په خپلو سترگو کښ دَ مِيني بيا نه موندله څکه چه ئي په هغي
کښ څه عيب بياموند نو طلاقنامه دِ دَ هغي دَپارَ وليکي او دَ هغي
۲ په لاس کښ دِ ورکړِي او له خپل کور نه دِ ئي وشړِي ۲ او هرکله
۳ چه دَده له کور نه وتلي وِي لاړه دِ شي دَ بل سړي دَپارَ دِ شي ۳ نو
که چرِي دا بل سړي هم دا بدَ کړِي او دَ دي دَپارَ طلاقنامه وليکي او

دَ دي په لاس کښ يُ ورکړي او له خپل کور نه يُ وشړي يا هرکله
چه دا بل سړي هغه چه دا ئې دَ ځان دَپارَ ښځې‌توب له اخستلي وو
۴ مړ شِي ۴ نو ورومبي څښتن هغه چه دا ئې شړلي وه طاقت نه لري
چه دوباره يُ واخلي چه دَده دَپارَ ښځه شِي پس له هغي نه چه
۱ هغه ناپاکه شوه ځکه چه په نزد دَ خداوند دا مکروه دِي نو ته په هغې
مزکي هغه چه تا له به ئې خداوند الله ستا دفتر درکړي ګناه مه راکاږه
۵ ۵ که چرې سړي نوي ښځه واخلي نو په جنګ کښ دِ نه وزي او
هيڅ کار دِ په هغه باندِ ونه کړي شي په خپل کور کښ دِ يو کال آزاد
۶ وِي او خپله ښځه دِ خوشحاله کړي هغه چه ده اخستي دَه ۶ هيڅوک دِ
ميچن يا پاسني بل ګانړه نه اخلي ځکه چه دي ژوندون ګانړه اخلي-
۷ ۷ که چرِ څوک سړي بيامونديِ شي چه له خپلو ورونړو بني‌اسرائيلو
نه څه غلا وکړي او سوداګري پرِ کوي يا ئې خرڅ کړي نو هغه غل دِ
۸ مړ شِي نو له خپل مينځَ به ته شر لري کړي ۸ دَ کوړ له مرض نه
خبردار اوسه چه ته په کوشش سره وساتي او په شان دَ ټول هغه
څه چه کوهنان دَ لاوِيانو درته ښيي عمل وکړه لکه چه ما ورته حکم
۹ کړي دي خبردار شيِ چه عمل وکړئِ ۹ ياد کړه چه خداوند الله ستا په
لاري کښ ستاسو دَ وتلو په وقت له مصر نه له مريم سره څه کار وکړ
۱۰ ۱۰ هرکله چه خپل ګاوندِي له څيز پور ورکړي نو ورکړه مه ننوزه
۱۱ چه تر ګانړه واخلي ۱۱ بهر ودريږه او هغه سړي چه تا له پور ورکړي
۱۲ دي ستا دَپارَ دِ ګانړه بهر ته راوباسي ۱۲ او که سړي خوار وِي نو دَ
۱۳ هغه په ګانړي کښ مه اوده کيږه ۱۳ دَ نمر پريواته په وقت ګانړه ضرور
په بيرته ورکړه چه په خپل زړوکي کښ اوده شي او تا ته دُعا وکړي
نو په نزد دَ خداوند الله ستا به ستا دَپارَ به رښتيني وِي
۱۴ ۱۴ په عاجز مزدور او په خوار باندِ چه ستا له ورونړو نه وِي
که ستا له مسافرو نه وِي هغه چه ستا په مزکي کښ ستا په دروازو

۱۵ کښِ وِي ظلم مه کوه ۱۵ په هغې ورځې هغه له دَ هغه مزدوري ورکړه
او نمر پرِ مه پرېباسه ځکه چه خوار دَي او په هغې پورېِ زړه تړلي دي
هسې نه وِي چه خداوند ته په تا فرياد وکړِي نو ګناه به په تا شِي
۱۶ ۱۶ پلرونه دِ په زامنو قتل نه کړي شِي او نه دِ زامن په پلرونو
۱۷ قتل کړي شِي هر سړي دِ په خپلې خطا قتل کړي شِي ۱۷ دَ مسافر او دَ
يتيم په مُقدمې کښِ خلل مه کوه او دَ کونډو زړوکي په ګانړي مه اخله
۱۸ ۱۸ او ياده کړه چه په مصر کښِ ته مريي وې نو له هغه ځايه نه خداوند
الله ستا ته خلاص کړي دَدې دَپارَه زه تا ته حکم کوم چه ته په دې
خبري عمل وکړې
۱۹ ۱۹ هر کله چه ته په خپل پټي کښِ خپل فصل ريبې او په پټي
کښِ يوه ګيډۍ هيره کړې نو مه جاروزه چه يُي واخلې دَ مسافر او دَ
يتيم لو دَ کونډو دَپارَ دِ وِي چه خداوند الله ستا تا له برکت درکړي ستا
۲۰ دَلاس په ټول کار کښِ ۲۰ هر کله چه ته خونه خپل وڅنډې نو ته يُي
څانګي دوباره مه څنډه دَ مسافر او دَ يتيم او دَ کونډې دَپارَ دِ وِي-
۲۱ ۲۱ هر کله چه ته له خپلو انګورو نه انګور انړوې نو دوباره يُي مه انړوه
۲۲ دَ مسافر او دَ يتيم او دَ کونډې دَپارَ دِ وِي ۲۲ او ياده کړه چه ته په
مصر کښِ مريي وې دَدې دَپارَ زه تا ته حکم کوم چه ته عمل وکړې په
دې خبري باندِ ٭

## پنځه ويشتم باب

۱ ۱ هر کله چه دَ خلقو په مينځ کښِ جګړه وِي او عدالت له لاړ شِي
چه قاضيان دَ دوي انصاف وکړِي نو رښتيني دِ رښتيني کړِي او شرير
۲ دِ شرير کړِي ۲ نو داسې به وشِي که هغه شرير لايق دَ وهلو وِي نو
قاضي دِ هغه پرېمخې کړِي او دَ ځان دَ وړاندِ دِ يُي ووهلي شِي په شمار سره
۳ په قدر دَ هغه دَ شر ۳ څلويښت دُوري دِ يُي ووهِي نه دِ زياتوي هسې
نه وِي که زيات شِي په دُورو وهلو کښِ په دې وهلو باندِ ډېر زيات

۴ ښي نو ستا ورور به ستا په سترګو کښې سپک شي ۴ په غوبل کښې
دَ غوايه خوله مه تړه

۵ ۵ هر کله چه وروڼه سره يوځاي اوسي او يَو تِرې مړ شي او څوي
يې نه وِي نو دَ مړ شوي ښځه دِ بهر ته پردي سړي دَپارَ نه ځي دَ
خښتن ورور دِ ورسره کور شي او دَ ځان دَپارَ دِ يې په ښځه توب سره
۶ واخلي او دَ ليوروالي حق دِ يې پوره کړي ۶ او داسي به وشي چه ورښيَ
تِرې نه پيدا شي دَ مړ ورور په نُوم به وِي چه نُوم يې له اسرائيل
نه ونه توکلي شي

۷ ۷ او که هغه سړي راضي نه شي چه خپله وِندار واخلي نو
وِندار دِ يې دروازي ته مشرانو ته وخيژي او و دِ وائي چه څما ليور په
اسرائيل کښې انکار کړي دَي چه دَ خپل ورور نُوم ودروي څما حق دَ
۸ ليوروالي نه پوره کوي ۸ نو دَ هغه دَ ښهر مشران دِ يې وبولي او ورسره
دِ خبري وکړي نو که ودريږي او ووائي چه زه راضي کيږم چه يې واخلم
۹ ۹ نو دَ مشرانو دَ سترګو دَ وړاندِ دِ وِندار ورنيژدي شي او دَ هغه
له پښي نه دِ يې پڼړه وباسي او دَ هغه په مخ دِ وتوکي او په ځواب
کښې دِ ووايي چه هغه سړي چه دَ خپل ورور کور نه جوړوي داسي به
۱۰ ور سره وکړي شي ۱۰ نو په اسرائيل کښې دِ نُوم دَ هغه وبللي شي کور
۱۱ دَ پڼړي يستلي شوي ۱۱ هر کله چه دوه سړي سره جنګ کوي سړي او
ورور يې وِي او ښځه دَ يو له دوي نه دروړاندِ شي چه دَ وهونکي له
لاس نه خپل سړي خلاص کړي او لاس دِ ور اوږد کړي دَ هغه سترِ
۱۲ عورت دِ ونيسي ۱۲ نو لاس يې پريکړه ستا سترګي دِ پرِ رحم نه کوي -
۱۳ ۱۳ په خپلي بوجکيُ کښې مختلف وزنونه لوي او وړوکي دِ تا لره نه وِي -
۱۴ ۱۵ ۱۴ ستا په کور کښې مختلف اُوکي لوي او وړوکي دِ تا له نه وِي ۱۵ وزن
کامل او رښتيني دِ تا لره وِي او اوکي کامل او رښتيني دِ تا لره وِي
چه ستا ورځي اوږدي شي په هغي مزکي باندِ چه تا له به يې درکړي

۱۶ خداوند الله ستا ۱۶ څکه چه هرڅوک چه داسي کار کوِي هرڅوک چه دَ
غبن کار کوِي په نزد دَ خداوند الله ستا مکروه دي
۱۷ ۱۷ ياد کړه چه له مصر نه ستا دَ وتلو په وقت په لاري کښ عماليقيانو
۱۸ له تا سره څه وکړل ۱۸ څه رنګ په تا پيښ شه په لاري کښ او ستا
ورستِنِي ئي ووهل ټول ضعيفان چه له تا نه ورستووُ او ته ستړي
۱۹ او ستومانه وي او له الله نه ئي ويره ونه کړه ۱۹ نو هرکله چه له
ټولو دُښمنانو خپلو نه چه له تا نه ګيرچاپيره دِي تا له خداوند الله ستا
آرام درکوِي په هغي مزکي کښ چه خداوند الله ستا به ئي تا له ميراث
درکړِي چه ته ئي دفتر کړي نو ياد دَ عماليقيانو دَ آسمان له لاندِ نه
وتوکه مه ئي هيروه ❊

## شپږويشتم باب

۱ ۱ او هرکله چه هغي مزکي ته راغلي چه خداوند الله ستا به ئي تا له
۲ ميراث درکړِي او دفتر ئي کړي او په کښ اوسي ۲ نو له ټولي ورومبيُ
ميوي دَ مزکِي هغه چه ته له مزکي نه راوړي هغه چه تا له به ئي خداوند
الله ستا درکړِي واخله او په ټوکرئِ کښ ئي واچوه او هغه ځاي
ته چه خداوند الله ستا ئي غوره کړِي چه خپل نوُم په کښ کيږدِي
۳ لاړ شه ۳ او هغه کوهين له چه په هغو ورځو کښ وِي ته ورشه
او ورته ووايه چه نن ورځ زه له خداوند الله ستا سره اقرار کوم چه
زه په هغي مزکي کښ چه خداوند قسم کړي وه
ځمونږ له پلار نيکونو سره چه مونږ له
۴ به ئي راکړِي داخِل شوم ۴ نو کوهين به ستا له لاس نه ټوکرئِ واخلي
۵ او وړاندِ دَ مذبح دَ خداوند الله ستا به ئي کيږدِي ۵ پس له هغه
ته دَ وړاندِ دَ خداوند الله خپل ناري کړه او ووايه چه پلار مِ دَ آرام
سرګردان وه نو مصر ته ورکوز شه او په لږو تنو سره هلته استوګي
۶ شه نو هلته فرقه لويه او زوراوره او ډيره شوه ۶ نو مصريانو له مونږ

سره بدي وکړه او موږ ئي سخت کړو او په موږ ئي سخت مريي توب کېښود
۷ ۷ نو هر کله چه موږ خداوند الله دَ پلار نيکونو خپلو ته فرياد وکړ نو
خداوند خموږ آواز واوريد او خموږ سختي او خموږ محنت او خموږ تنګي
۸ ئي وليدله ۸ نو خداوند موږ له مصر نه په زوراور لاس او په هَسکومټو
۹ او په لوي ويري او په نښنو او په معجزو سره راوويستلو ۹ او په دي ځاي
ئي داخل کړلو او موږ له ئي دا مزکه چه په کښې شوده او شات بهيږي
۱۰ راکړه ۱۰ نو اوس اي خداوند وګوره چه مِ وړومبئ ميوه دَ مزکي هغه چه
تا ما له راکړي ده پس له هغه ئي دَ خداوند الله خپل دَ
۱۱ وړاندِ کېږده او وړاندِ دَ خداوند الله خپل سجده وکړه ۱۱ او په ټولي
ښېګړي هغه چه تا له خداوند الله ستا درکړي ده او ستا کور له ئي
خوشحالي وکړه ته او لاوِي او مسافر هغه چه ستا په مينځ کښې دِي
۱۲ ۱۲ هر کله چه په دريم کال کښې چه کال دَ عُشرونو دي له عُشر
ورکولو دَ ټولو عُشرونو دَ حاصلاتو خپلو نه ته پوره کړي او ور دِ کړه
لاوِي او مسافر او يَتِيم او کُونډي له چه ستا په دروازو کښې ئي
۱۳ وخوره او ماړه شول ۱۳ نو وړاندِ دَ خداوند الله خپل ووايه چه ما
ټول پاک له کور نه راوړل او هم لاوِي او مسافر او يَتِيم او کونډي له
په شان دَ ټول حُکم ستا مِ ورکړل هغه چه ما ته دِ حکم کړي وه
۱۴ او ما ستا حکمونه جاريستلي نه دِي او نه مِ هغه هير کړي دِي ۱۴ په
خپل غم کښې مِ ترِ نه دِي خوړلي او په ناپاک کښې مِ ترِ نه دِي اخستي
او دمړي دَپارَ مِ ترِ نه دي ورکړي بلکه ما آواز دَ خداوند الله خپل
واوريده او په شان دَ ټول هغه څه چه ما ته دِ حکم کړي وه عمل
۱۵ مِ وکړ ۱۵ له آسمان نه دَ خپلي پاکئِ له ځاي نه وګوره او خپل
قام اسرائيل له او هغي مزکي له چه تا موږ له راکړي ده برکت ورکړه
لکه چه تا خموږ له پلار نيکونو سره قسم کړي وه مزکه ده چه شوده
او شات په کښې بهيږي

۱۶ ۱۶ نن ورځ خداوند الله ستا تا ته حکم وکړ چه ته به په دي
شریعتونو او حکمونو باندِ عمل وکړي نو و ني ساته او پرِ عمل وکړه په
۱۷ خپل ټول زړه سره او په خپل ټول ځان سره ۱۷ تا نن ورځ له خداوند
سره اقرار وکړ چه ستا الله به وِي او دَ هغه په لارو کښ به ته ځي
او هغه شریعتونه او حقونه او حکمونه به ساتي او آواز به ئي اوري-
۱۸ ۱۸ او نن ورځ له تا سره خداوند اقرار وکړ چه ته به دَ هغه خاص قام
۱۹ شي لکه چه ئي تا نه ووېل او ته به ئي ټول حکمونه ساتي ۱۹ او تا په
صفت کښ او په نوم کښ او په عزّت کښ په ټولو قامونو چه ئي پيدا کړي
دِي هَسک کړي او چه ته دَ خداوند الله خپل دَپاره پاک قام شي لکه
چه ئي ووېل +

## اووه وېشتم باب

۱ ۱ او موسیٰ او دَ اسرائیل مشرانو قام ته حکم وکړ و ني ويل چه
۲ نن ورځ ټول هغه حکمونه چه زه ئي تاسو ته حکم کوم وساتئِ ۲ نو
داسي به وشي چه په هغي ورځي چه هغي مزکي ته چه خداوند الله ستا
به ئي تا له درکړي له اردن نه تېر شئِ نو لوئي لوئي کاڼي دَ ځان دَپارَ
۳ ودروه او په ګچ ئي ليو کړه ۳ او پس له تېرېدلو نه دَدي شريعت ټولي
خبري په هغو وليکه چه په هغي مزکي کښ چه خداوند الله ستا به ئي
تا له درکړي ته به داخل شي مزکه چه په کښ شوده او شات بهيږي
۴ لکه چه خداوند الله دَ پلار نيکونو ستا تا ته ويلي وُو ۴ داسي به وشي
چه له اردن نه تېر شئِ دَ عيبال په غره باندِ دا کاڼي چه ئي نن ورځ
۵ زه تاسو ته حکم کوم ودرويِ او په ګچ ئي ليو کړيِ ۵ او دَپارَ دَ خداوند
الله خپل هلته مذبح جوړه کړه مذبح له کاڼي نه او سپنه پرِ مه لګوه
۶ ۶ مذبح دَ خداوند الله خپل له سلامتو کاڼو نه جوړه کړه او دَ خداوند الله
۷ خپل دَپارَ دَ سيزلو قرباني وخيژوه ۷ او دَ سلامتيا قربانيِ ذبح کړه او
۸ هلته ئي وخوره او وړاندِ دَ خداوند الله خپل خوشحالي کوه ۸ او په ښه شان

سره دَ دي شريعت ټولي خبري په کاڼرو وليکه
۹ بيا موسیٰ او کوهينانو لاوِيانو ټول اسرائيل سره خبري وکړي و ۹
ئي ويل چه ستوجي شه او واوره اي اسرائيل نن ورځ ته دَ خداوند الله
خپل دَپارَ قام شولي ۱۰ نو دَ خداوند الله خپل آواز واوره او دَ هغه ۱۰
په حکمونو او شريعتونو عمل وکړه هغه چه ئي نن ورځ زه تا ته حکم کوم
۱۱ او موسیٰ په هغي ورځي کښ قام ته حکم وکړ و ئي ويل ۱۲ چه ۱۱ ۱۲
دوي دِ دَ جريزيم په غره ودريږي چه هرکله تاسو له يردن نه تيريږئ
دوي قام ته برکت ووائي شمعون او لاوي او يهودا او يساکار او يوسف
او بنيامين ۱۳ او دوي دِ دَ لعنت دَپارَ دَ عيبال په غره ودريږي روبين ۱۳
او جاد او اشير او زبولون او دان او نفتالي ۱۴ نو لاويان دِ خبري ۱۴
وکړي او ټولو خلقو دَ اسرائيل ته دِ په لوي آواز سره ووائي ۱۵ چه لعنتي ۱۵
دي هغه سړي چه بُت جوړوي تراشلي شوي يا قالب کړي شوي چه په
نزد دَ خداوند مکروه دي دَ هوښيارانو دَ لاسونو کار او پټ ئي کيږدي او
ټول قام دِ ځواب ورکړي او و دِ وائي آمين ۱۶ لعنتي دي هغه چه خپل ۱۶
پلار او مور سپک کڼري او ټول قام دِ ووائي آمين ۱۷ لعنتي دي هغه چه ۱۷
دَ خپل ګوانډي دَ سرحد نښي ټيلوهي او ټول قام دِ ووائي آمين -
۱۸ لعنتي دَي هغه چه ړوند له لاري نه بي لاري کوي او ټول قام دِ ووائي ۱۸
آمين ۱۹ لعنتي دي هغه چه دَ مسافر او دَ يتيم او دَ کونډي مقدّمه ۱۹
خرابوي او ټول قام دِ ووائي آمين ۲۰ لعنتي دي هغه چه دَ پلار له ښځي ۲۰
سره څملي ځکه چه دي دَ پلار لمن اړوي او ټول قام دِ ووائي آمين -
لعنتي دي هغه چه له څه څاروي سره څملي او ټول قام دِ ووائي آمين- ۲۱
۲۲ لعنتي دي هغه چه له خور سره چه ئي دَ پلار لور يا ئي دَ مور لور وي ۲۲
څملي او ټول قام دِ ووائي آمين ۲۳ لعنتي دي هغه چه له خيلي خواښي ۲۳
سره څملي او ټول قام دِ ووائي آمين ۲۴ لعنتي دي هغه چه خپل ۲۴
ګوانډي په پټه ووژني او ټول قام دِ ووائي آمين ۲۵ لعنتي دي ۲۵

هغه چه بډې واخلي چه څوک بې‌ګناه ووژني او ټول قام دِ ووائي آمين
۲۶ ۲۶ لعنتي دي هغه چه دَ دي شريعت په خبرو نه ودريږي چه پر
عمل وکړي او ټول قام دِ ووائي آمين ۰ آمين ۰

## اته ويشتم باب

۱ ۱ او داسې به وشي که چرې به آواز دَ خداوند الله خپل ښه واوري
بيدار شي چه دَ هغه په ټولو حکمونو باندِ هغه چه زه ئې تا ته نن ورځ
حکم کوم عمل وکړي نو خداوند الله ستا به تا دَ مزکي په ټولو قامونو
۲ باندِ هَسک کړي ۲ او دا ټول برکتونه به په تا راشي او تا ته به ورسيږي
۳ هرکله چه ته دَ خداوند الله خپل آواز واوري ۳ ته به په ښهر کښ
۴ مبارک شي او ته به په پټي کښ مبارک شي ۴ او ستا دَ ګيډې
ميوه او ستا دَ مزکي ميوه او دَ خارويو ميوه ستا دَ غواؤ زيږيدنه
۵ او ستا دَ ګډو بيزو کندوکونه به مبارک شي ۵ ستا ټوکرئ او ستا تالي
۶ به مبارک شي ۶ په خپلو ننوتلو کښ به مبارک شي او په خپلو وتلو
۷ کښ به مبارک شي ۷ خداوند به ستا دښمنان چه په تا راغلي وي ستا
دَ وړاندِ ووهي په يوې لارې به په تا راشي او په اوؤو لارو به ستا دَ
۸ وړاندِ وتښتي ۸ ستا دَپارَ به خداوند ستا په خزانو کښ او په ټول هغه
څه کښ چه ته به خپل لاس ورته اوږدوي دَ برکت حکم ورکړي او تا به
په هغې مزکي کښ چه خداوند الله ستا به ئې تا له درکړي مبارک کړي
۹ ۹ هرکله چه ته حکمونه دَ خداوند الله خپل وساتي او دَ هغه په لارو
کښ لاړ شي نو خداوند به تا دَ ځان دَپارَ پاک قام ودروي لکه چه له
۱۰ تا سره ئې قسم کړي دي ۱۰ نو ټول قامونه دَ مزکي به ګوري چه نُوم دَ
۱۱ خداوند په تا باندِ ويلي شوي دي او له تا نه به ويريږي ۱۱ او خداوند به
تا په ښيګړې سره زيات کړي ستا دَ ګيډې په ميوې کښ او ستا دَ
خارويو په ميوې کښ او ستا دَ مزکي په ميوې کښ په هغې مزکي باندِ
چه خداوند قسم کړي دي ستا له پلرونو نيکونو سره چه تا له به ئې

۱۲ درکړِي ۱۲ ستا دَپارَ به خداوند خزانه نیکه دَ آسمان پرانزي چه ستا
مزکي له په خپل وقت کښې باران ورکړِي او ستا دَ لاس په ټول
عمل کښې تا له برکت درکړِي نو ته به ډېرو قامونو له قرض ورکوي او
۱۳ ته به قرض نه اخلي ۱۳ او هرکله چه ته حکمونه دَ خداوند الله خپل
واوري هغه چه نن ئې زه تا ته حکم کوم چه و ئې ساتي او پرې عمل
وکړي نو خداوند به تا سَر کړِي نه لکئي او ته به فقط پورته ئې او نه
۱۴ لاندې ۱۴ او له ټولو خبرو نه هغه چه ئې زه تا ته نن ورځ حکم کوم
ښي طرف کیڼ طرف ته مه جاروزه چه ته نورو خدایانو پسې لاړ شي
چه عبادت ئې وکړي
۱۵ ۱۵ او و به شِي که ته آواز دَ خداوند الله خپل وا نهٔ وري چه بیدار
شي چه په ټولو حکمونو او شریعتونو ئې هغه چه زه ئې نن ورځ تا ته
حکم کوم عمل و نه کړي نو دا ټول لعنتونه به په تا راشِي او تر تا به ورشِي
۱۶ ۱۶ ته به په ښهر کښې لعنتِي شي او ته به په پټي کښې لعنتِي شي۔
۱۷ ۱۸ ۱۷ ستا ټوکرۍ او ستا تالي به لعنتِي شِي ۱۸ ستا دَ کیډې میوه او ستا
دَ مزکي میوه او ستا دَ غواوُ زیږولي شوي او ستا دَ ګډو بیزوګنډکونه
۱۹ ۲۰ به لعنتِي شِي ۱۹ په خپلو ننوتلو کښې به ته لعنتِي شي ۲۰ خداوند به په
تا لعنت او پریشانِي او ملامتیا راستوِي په ټول هغه څه کښې چه
ستا لاس ورته اوږدیږي چه ته ئې وکړي څو چه ته به هلاک او زر
۲۱ به فنا شي دَ بدو کارونو خپلو له کبله چه زه دِ پرېښودلی یم ۲۱ او
خداوند به په تا پوري وبا ونښلوِي څو چه له هغي مزکي نه چه ته به
۲۲ ور داخلیږي چه دفتر ئې کړي تا هلاک کړِي ۲۲ او خداوند به تا په ټوخلي
سره او په تبي سره او په سوِي سره او په تاؤ سره او په تُورِي سره
او په تورکِي سره او په زېړي سره و وهِي او درپسې به شِي تر هغه
۲۳ چه تا فنا کړِي ۲۳ او ستا آسمان هغه چه ستا په سر باندِ دَي
۲۴ دَ زېړو او مزکه هغه چه ستا لاندِ دَه دَ اُوسپنې به شِي ۲۴ او خداوند به

باران دَ مزکي ستا گرد او دوړي کړي چه له آسمان نه به په تا راپريوزي
۲۵ څوچه ته هلاک شي ۲۵ او خداوند به تا دَ خپلو دُښمنانو دَ وړاندِ مات
کړي چه په يَوي لاري کښ به پرِ ورځي او په اووو لارو کښ به دَ
هغو دَ وړاندِ تښتي او ته دَ مزکي په ټولو ملکونو کښ به تار پتار شي
۲۶ ۲۶ او ستا تنه به دَ ټولو مرغانو دَ آسمان او دَ مزکي دَ ځناورو خوراک
۲۷ شي او څوک به نه وِي چه ئي وشړي ۲۷ او خداوند به تا دَ مصر په
ننګئِ سره او په بواسيرو سره او په پمن والي سره او په خارښت سره ووهي
۲۸ چه به ترِ صحت موندلي نه شي ۲۸ او خداوند به تا په ليونتوب سره او
۲۹ ړوندوالي سره او دَ زړه په پريشانئِ سره ووهي ۲۹ نو ته به په نمازپښين
کښ لټوي لکه چه ړوند په تيَرَي کښ لټوي او ته به په خپلو لارو کښ
فائده مند نه شي بلکه ټولي ورځي ته به فقط ظلم کړي شوي او لُوټ
۳۰ کړي شوي ئي او خلاصونکي به دِ نه وِي ۳۰ ته به ښځه کوژدن کړي او
بل سړي به ورسره څملي ته به کور جوړ کړي او په کښ به نه اوسيږي
۳۱ ته به انګور وکري او وا به ئي نه نړوي ۳۱ ستا دَ سترګو دَ وړاندِ به
ستا غوايه ذبح کړي شي او ته به ترِ و نه خوري ستا خر به ستا دَ وړاندِ
و شوکولي شي او تا ته به و نه جاريستلي شي ستا دُښمن له به ستا کډي
۳۲ ورکړي شي او خلاصونکي ستا دَپارَ به نه وِي ۳۲ ستا زامن او ستا لُونړه
به بل قام ته وسپارلي شي او ستا سترګي به کړئِ ورځ ور ته کوري نو
۳۳ ستړي به شي او ستا په لاس کښ به زور نه وِي ۳۳ ستا دَ مزکي ميوه
او ستا ټوله خواري قام به ئي وخوري چه ته به ئي نه پيژنئي نو ته به
۳۴ ټولي ورځي بي له ظلم کړي شوي او لتاړ کړي شوي نه نه ئي ۳۴ او ته به
۳۵ ليوني شي دَ خپلو سترګو له ليدو نه هغه چه ته به کوري ۳۵ خداوند به
تا په بدودانو سره په زنګونونو باندِ او په پنډو باندِ ووهي تر هغه چه
دَ جوړيدلو توان به دِ نه وِي ستا دَ پښو له تلو نه ستا دَ سر تر تالُو
۳۶ پوري ۳۶ خداوند به تا او ستا بادشاه هغه چه ته به ئي په خپل سر ودروي

بوزي غیر قام ته چه نه ته او نه ستا پلار نیکونه به ئي پیژني او هلته
به دَ نورو خدایانو چه لرگي او کاڼي وِي عبادت کوي ۳۷ او ته به په ۳۷
ټولو قامونو کښِ چه تا به خداوند هلته بیائي حیران او متل او توقه شي
۳۸ ډیر تخم به مزکي له وړي او لږ به جمع کوي ځکه چه ملخ به ئي وخوري ۳۸
۳۹ انګور به وکري خدمت به ئي وکړي او شراب به ئي ونه څښي او ۳۹
نه به تږِ وانړوي ځکه چه چنجي به ئي وخوري ۴۰ ستا دَیارَ به ستا په ۴۰
ټولو سرحدونوخونه نه وِي او په تیلو به ئي غوړ نه شي ځکه چه ستا
خونان به پریوزِي ۴۱ زامن او لُونړه به وزیږوِي او ستا به نه شِي ځکه ۴۱
چه هغوي به په بند لاړ شِي ۴۲ ستا ټولي وني او ستا دَ مزکي میوي ۴۲
به ملخان واک کوِي ۴۳ مسافر هغه چه ستا په مینځ کښ وِي به تا به ۴۳
ډیر پورته شِي او ته به ډیر کښته شي ۴۴ هغه به تا له قرض درکوِي ۴۴
او ته به قرض نه ورکوي هغه به سر شِي او ته به لکئي شي ۴۵ او په ۴۵
تا به دا ټول لعنتونه راشِي او درپسي به شِي او تا به ونیسي څو چه
هلاک شي ځکه چه تا دَ خداوند الله خپل آواز وانه ورید چه دَ هغه حکمونه
او حقونه وساتي هغه چه تا ته ئي حکم کړي وه ۴۶ نو په تاکښ او ستا ۴۶
په اولاد کښ به تر ابدَ پوري نښه او تعجب شِي ۴۷ ځکه چه تا دَ ۴۷
ټولو څیزونو له ډیروالي نه دَ خداوند الله خپل عبادت په خوشحالئِ او
په پاک زړه و نه کړ ۴۸ ته به دَ خپلو دُښمنانو خدمت کوي هغه ۴۸
چه خداوند به ئي درلیږِي په لوږي او تندي او برمندوالي او دَ هرڅیز
په لیوالتوب کښ نو دَ اُسپني غړوندي به ستا په گردن کښ واچوِي
تر هغه چه تا هلاک کړِي ۴۹ خداوند به په تا باندِ قام له لرِي نه له ۴۹
انتها دَ مزکي نه راپورته کړِي لکه چه نسر الوزي داسي قام چه ته
به ئي په ژبه نه پوهیږي ۵۰ تریو مخي قام چه نه دَ زړو ادب او ۵۰
نه به په هلک رحم کوي ۵۱ نو ستا دَ څارویو میوه او ستا دَ ۵۱
مزکي میوه به وخوري څو چه ته هلاک شي او ستا دَیارَ نه غله او نه

شراب او نه تېل او نه ستا دَ غواؤ زېږولي شوي او نه دَ ګډو کنډکونه
۵۱ به پاتي ښي تر هغه چه تا فنا کړي ۵۲ او ستا په ټولو دروازو کښې
به تا ګير کړي تر هغه چه ونړوي ستا لوړ او محکم ديوالونه هغه چه
ته پرِ تسلّه کوي ستا په ټولو دروازو کښې ګير کړي ستا په ټولي مزکي
۵۲ کښې هغه چه خداوند الله ستا به ئي تا له درکړي ۵۳ نو ته به ميوه
دَ ګېډي خپلي خوري غوښي ستا دَ زامنو او ستا دَ لوڼو دِي هغه
چه خداوند الله ستا په ګېرېدلو او په تنګسي کښې ئي تا له درکړي دِي
۵۳ هغه ستا دُښمن به پرِ تا تنګوي ۵۴ هغه سړي چه په تا کښې نازک
او نازپرورد وِي سترګي به ئي په خپل ورور او دَ خپلي غېږي په ښځي
۵۵ او په باقي زامنو بانډِ هغه چه ئي پرِ ښودلي وِي بدي وِي ۵۵ چه دَ
خپلو زامنو له غوښو نه هغه چه دي به ئي خوري له دوي نه يَو له ورکوي
ځکه چه په ګېرېدلو او تنګسي کښې هغه چه ستا په ټولو دروازو
کښې ستا دُښمن به تا پرِ تنګ کړي دَده دَپارَ به هيڅ څيز پاتي نه شي
۵۶ ۵۶ هغه ښځه چه په تا کښې نازکه او نازپرورده وِي هغه چه په
مزکي بانډِ توان نه لرِي چه دَ خپلي ښپي تلي کېږدِي دَ ناز پروردئ
او نازکئ له سببَ هغه به دَ خپلي غېږي په سړي او په خپل ځوي
۵۷ او په خپلي لُور سترګي بدي کړي ۵۷ په خپلي ماشومه بانډِ چه ئي
دَ دواړو پښو له مېنځ نه راوزي او په خپل اولاد بانډِ هغه چه
ترِ پيدا کېږِي ځکه چه دا به ئي په احتياج دَ هر څيز کښې په ګېرېدلو
او تنګسي کښې پټ خوري هغه چه ستا دُښمن به ستا په دروازو
۵۸ کښې تا پرِ تنګ کړي ۵۸ که ته په ټولو خبرو د دي شريعت چه په دې
کتاب کښې ليکلي شوي دي توجّهه و نه کړي چه پرِ عمل وکړي چه ته له
۵۹ دي لوي او هيبت ناک نُوم چه يَهُوَه الله ستا دي هيبت وکړي ۵۹ خداوند
به ستا وهني او ستا دَ اولاد وهني عجيبه کړي لوي سختي وهني مدامي
۶۰ او رنځونه خراب مدامي ۶۰ او دَ مصر ټول رنځونه چه ترِ ويريدي په تا به

٦١ راولي نو په تا پوري به نښتي وِي ٦١ هم دا رنګ ټول رنځونه او ټولي وهني
چه دَدي شريعت په کتاب کښ ليکلي نه دِي دا به خداوند په تا باندِ مقرر
٦٢ کړِي ځوچه ته هلاک شي ٦٢ نو تاسو به لږ تنه پاتي شيِ بدل له هغه
نه چه تاسو دَ آسمان دَ ستورو په شان ويِ په ډيروالي کښ ځکه چه تا
٦٣ دَ خداوند الله خپل آواز وا نه وريد ٦٣ او داسي به وشِي لکه چه خداوند خوشحال
وه چه له تاسو سره نيکِي وکړِي او تاسو ډير کړِي داسي به خداوند په تاسو
خوشحال شِي چه تاسو فنا کړِي او تاسو هلاک کړِي نو له هغي مزکي
نه چه ته ورداخليږي چه دفتر به يُ کړي ستاسو بيخ به ويستلي شِي۔
٦٤ ٦٤ او تا به خداوند په ټولو قامونو کښ دَ مزکي له يو سر نه دَ هغي تر بله
سره پوري تار پنار کړِي او هلته به ته دَ نورو خدايانو عبادت کوي
چه له لرګِي يا له کاڼِي نه به وِي نه ته او نه ستا پلار نيکونه به يُ
٦٥ پيژنِي ٦٥ او په دي غير قامونو کښ به ته په امن نه يُ او ستا دَ پښو
تلو له به قلاري نه وِي بلکه هلته به خداوند تا له زړه لړزيدونکِي او دَ
٦٦ سترګو دوند او غمناکِي دَځان درکړِي ٦٦ او ستا ژوندون به ستا دَ وړاندِ
زوړند وِي او شپه اُو ورځ به ته ويريږي او په خپل ژوندون به دِ
٦٧ اعتبار نه وِي ٦٧ سحر به ته وايِي چه کاشکِي نماښام وي او نماښام
به ته وايِي چه کاشکِي سحر وي دَخپل زړه له ويري نه هغه چه ويريږِي
٦٨ به او دَخپلو سترګو له نظر نه هغه چه به يُ ګوري ٦٨ او خداوند به تا په
هغي لارِي کښ چه ما در ته ويلي وُو چه بيا به يُ نه وينِي په بيړو کښ
مصر ته بيا بوزيِ نو هلته به مريونه او وِينځي دَخپلو دُښمنانو دَپارَ
تاسو خرڅ کړي شيِ او څوک به پيرودونکِي نه وِي ٭

## نه ويشتم باب

١ ١ دا دَ هغه عهد خبري دِي چه خداوند موسیٰ ته حکم کړي وه چه دَ
مواب په مزکي له بنِي اسرائيلو سره يُ وتړِي سوا له هغه عهد نه چه
٢ له دوي سره يُ په حوريب کښ تړلي وه ٢ او موسیٰ ټول بنیاسرائيل

وبللِ او ور ته ئې وويل څه چه خداوند ستاسو دَ سترګو دَ وړاندِ دَ مصر
په مزکې کښې له فرعون سره او له ټولو مريونو سره ئې او له مزکې سره
ئې وکړل تاسو وليدل ٣ هغه لوي ازمينښتونه او هغه نښي او هغه ٣
لوي معجزي هغه چه ستا سترګو وليدل ٤ ولي خداوند تاسو له زړه دَ ٤
پوهيدلو دَپارَ او سترګي دَ ليدلو دَپارَ او غوږونه دَ اوريدلو دَپارَ تر دي
ورځي پوري نه دِي درکړِي څه ؟ ٥ او تاسو مِ څلويښت کالَ په بيابان ٥
کښې وګرزولئِ په تاسو باندِ ستاسو زړوکي زاړه نه شول او ستا په
پښو ستا پڼړي زړي نه شوي ٦ تاسو ډوډئِ نه ده خوړلي او تاسو ٦
شراب او نشه نه ده څښلي چه تاسو پوه شئِ چه زه خداوند الله ستاسو
يم ٧ او هر کله چه تاسو دي ځاي له راغلئِ نو سيحون بادشاه دَ حَشبُون ٧
او عُوج بادشاه دَ باشان څمونږ مخي له دَ جنګ دَپارَ راووتل نو مونږ
هغوي مات کړل ٨ نو مونږ دَ هغو مزکه واخستله او روبينيانو او ٨
جاديانو او دَ مَنَسيانو نيمي فرقي له مو ميراث ورکړه ٩ نو دَدي عهد ٩
خبري وساتئِ او پرِ عمل وکړئِ چه په هرڅه کښې چه تاسو به ئې کوئِ
فائده مند به شئِ

١٠ تاسو نن ورځ وړاندِ دَ يَهُوَهْ الله خيل تاسو ټول ستاسو ١٠
سرداران ستاسو دَ فرقو او ستاسو مشران او ستاسو منصب داران او
ټول سړِي دَ اسرائيل ولاړ يئِ ١١ او ستاسو هلکان او ستاسو ښځي او ١١
ستاسو مسافر هغه چه ستاسو په لښکر کښې دِي ستاسو دَ لرګي چلونکي
نه ستاسو تر اوبو ويستونکي پوري ١٢ چه په عهد دَ خداوند الله خپل او دَ ١٢
هغه په قَسَم کښې ته داخل شي هغه چه نن ورځ ئې خداوند الله ستا
له تا سره ترِي ١٣ چه تا نن ورځ دَ ځان دَپارَ قام ودرِوي او هغه ستا ١٣
خداوند شي لکه چه تا ته ئې وويل او لکه چه ستا له پلارو نيکونو ابراهام
او اسحاق او يعقوب سره ئې قسم کړي دَي ١٤ او نه زه له تاسو سره دا ١٤
عهد پواځي له تاسو سره ترم او دا قَسَم کوم ١٥ بلکه له هغه چا سره چه ١٥

هغه دلته نن ورځ* له مونږ سره نه دي ۱۶ ځکه چه تاسو پوهيږئ ۱۶
چه مونږ څه رنګ دَ مصر په مزکي کښ استوګي وُو او څه رنګ دَ
قامونو په مينځ کښ مونږ تير شولو. هغوي چه تاسو پرِ تير شوي وئ
۱۷ او تاسو دَ هغو پليتي او دَ هغو بُتان وليدل هغه چه هغو څخه ۱۷
وُو له لرګو او له کانړو او له سپينو زرو او له سرو زرو نه ۱۸ هسي ۱۸
نه وِي چه په تاسوکښ سړي يا ښځه يا خاندان يا فرقه وِي چه څموږ له
خداوند الله نه ئي نن ورځ زړه وګرزِي چه لاړ شِي چه دَ هغو غير قامونو
دَ خدايانو عبادت وکړِي هسي نه چه په تاسو کښ بيخ وِي چه دَ مرغوني
او دَ مستياري ميوه کوِي ۱۹ نو داسي به وشِي هر کله چه هغه خبري ۱۹
دَدي لعنت واورِي په خپل زړه کښ به ئي مبارک کړِي و به وائي چه
ځما دَپارَ به سلامتيا وِي که هرڅو به دَ خپل زړه په شر کښ ځم او نشه
په تُنديئِ زياته کړم ۲۰ خداوند به ئي و نه بخښي بلکه غضب دَ خداوند او ۲۰
غيرت به ئي په هغه وقت په هغه سړِي لوګي شِي او ټول لعنتونه به
چه په دي کتاب کښ ليکلي شوِي دِي په هغه به راکوز شِي او خداوند
به دَ آسمان. دَ لاندِ نه دَ هغه نُوم ونوګي ۲۱ او خداوند به هغه دَ شر دَپارَ ۲۱
دَ اسرائيل له ټولو فرقو نه په شان دُ ټولو لعنتونو دَ عهد چه په دي
کتاب دَ شريعت کښ ليکلي شوِي دِي بيل کړِي ۲۲ نو ستاسو دَ زامنو ۲۲
ورستني اولاد هغه چه پس له تاسو به ودريږي او مسافر هغه چه
له لري مزکي نه به راشِي وبه وائي هر کله چه سختيئِ دَ هغي مزکي او
دَ هغي رنځونه هغه چه خداوند به دا پرِ رنځوره کړِي وګورِي ۲۳ چه ټوله ۲۳
مزکه ئي ګوګړ او مالګه شِي نو کرلي به نه شِي او نه به ټوکيدلي شِي او
نه هيڅ وابنه به په کښ زرغونيږي دَ سُدوم او دَ عموراه او دَ ادماه
او دَ صبوئيم دَ اوړيدلو په شان چه خداوند هغوي په خپل قهر او غضب
سره واړول ۲۴ او ټول غير قامونه به وائِي چه خداوند څه دَپارَ دا رنګ ۲۴
وکړل له دي مزکي سره دَدي لوي غضب دَ تاؤ څه سبب دي ۲۵ نو وائِي ۲۵

به چه دوي عهد دَ خداوند الله دَ پلار نيکونو خپل پرېښود هغه چه ئي
له دوي سره تړلي وه په هغه وقت چه دوي ئي دَ مصر له مزکي
٢٦ نه راويستل ٢٦ او لاړل او دَ نورو خدايانو عبادت ئي وکړ او سجده
ئي ورته وکړه داسي خدايان چه دوي هغه نه پېژندل او دوي ئي پر
٢٧ ويشلي نه وُو نو په هغي مزکي باندِ غضب دَ خداوند په جوش شه تر
هغه چه ټول لعنتونه چه په دي کتاب کښ ليکلي شوي دِي په هغي
٢٨ ئي راکوز کړل ٢٨ او له خپلي مزکي نه خداوند دوي له بېخ وويستل په
غضب او په قهر او په لوي غصّي سره او بلي مزکي ته ئي وغورزول
٢٩ لکه په نن ورځ کښ ٢٩ پټِي خمونږ دَ خداوند الله دَپارَ دِي او سوکند
ئي خمونږ او خمونږ دَ زامنو دَپارَ دي هميشه چه دَدي شريعت په ټولو
خبرو مونږ عمل وکړو ٭

## ديرشم باب

١ ١ او داسي به وشِي هرکله چه په تا دا ټولي خبري برکت او لعنت درشِي
هغه چه ستا دَ وړاندِ مِ کښيښودل نو که ته ئي په ټولو غيرو قامونو کښ
هغه چه خداوند الله ستا ته ورو شړلي ته ئي په خپل زړه کښ راوړي
٢ ٢ او خپل خداوند الله ته راوګرزي او دَ هغه آواز واوري ته او ستا
زامن په ټول زړه خپل او په ټول ځان خپل سره په شان دَ ټول هغه
٣ څه چه نن ورځ ئي زه تا ته حکم کوم ٣ خداوند الله ستا به ستا بند په
بېرته راولي او په تا به رحم وکړِي او بيا له ټولو قامونو نه هغه چه خداوند
٤ الله ستا ته ورته تار پتار کړي وي تا به جمع کړِي ٤ که چرې وِي چه ته ئي
دَ آسمانونو تر انتها شړلي ئي نو خداوند الله ستا به تا له هلته نه جمع کړِي
٥ او له هلته نه به تا واخلِي ٥ او خداوند الله ستا به تا هغي مزکي له چه
هغه ستا پلار نيکونو دفتر کړي وه راولي او ته به ئي دفترِي شي او له تا
٦ سره به نيکي وکړِي او ستا له پلار نيکونو نه به زيات کړِي ٦ او خداوند الله
ستا به ستا زړه او ستا دَ نسل زړه ختنه کړِي چه په ټول زړه خپل

او په ټول ځان خپل يَهُوَهْ الله خپل دوست لري چه ژوندي اوسي-
۷ ۷ او خداوند الله ستا به دا ټول لعنتونه ستا په دښمنانو بانډ او ستا
۸ په کينه لرونکي بانډ هغه چه ته ئي دردولي وي راګوزکړي ۸ او ته به را
وګرزي او دَ خداوند آواز به واوري او دَ هغه په ټولو حکمونو بانډ هغه
۹ چه زه ئي نن ورځ تا ته حکم کوم عمل به وکړي ۹ نو خداوند الله ستا به
ستا دَ لاس په ټول عمل کښ ستا دَ ګيډي په ميوي کښ او ستا دَ
څارويو په ميوي کښ او ستا دَ مزکي به ميوي کښ ستا نيکي زياته
کړي ځکه چه خداوند به په نيکئ سره بيا له تا نه خوشحالَ شي لکه چه ستا
۱۰ له پلار نيکونو نه خوشحالَ وَه ۱۰ که چرِ ته دَ خپل خداوند الله آواز واوري
دَ هغه حکمونه او دَ هغه شريعتونه چه دَ دي شريعت په کتاب کښ
ليکلي شوِي دِي وساتي او ته په خپل ټول زړه سره او په خپل ټول
۱۱ ځان سره خپل خداوند الله ته وګرزي ۱۱ ځکه چه دا حکم چه زه ئي
۱۲ نن ورځ تا ته حکم کوم نه په تا ګران دَي او نه له تا نه لري دي ۱۲ دي
په آسمان کښ نه دَي چه ته ووايي چه څوک به ځمونږ دَپارَ آسمان
ته وخيژي او ځمونږ دَپارَ ئي واخلي او مونږ ته ئي واورِوي چه مونږَ
۱۳ پرِ عمل وکړُو ۱۳ او نه له سيند نه پوري غاړه دي چه ته ووائي چه څوک
به ځمونږ دَپارَ له سيند نه پوري غاړِه شِي او ځمونږ دَپارَ به ئي واخِلي
۱۴ او مونږ ته به ئي واورِوي چه مونږ پرِ عمل وکړُو ۱۴ بلکه دا خبره تا ته
ډير نِژدي ستا په خوله کښ ده او ستا به زړه کښ ده چه ته
پرِ عمل وکړي وګوره چه نن ورځ مِ ژوندون او نيکي او مرګ او
۱۵ شر ستا دَ وړاندِ کښيښودل ۱۵ هر کله چه نن ورځ زه تا ته حکم
کوم چه ته خداوند الله خپل دوست لره او ته دَ هغه په لارو کښ
ځه او دَ هغه حکمونه او حقونه او شريعتونه وساته چه ته ژوندي
شي او زيات شي او خداوند الله ستا به هغي مزکي کښ هغه چه ته
۱۶ به ورداخليږي چه دفتر ئي کړي تا له برکت درکړي ۱۶ نو که ستا زړه و

جاروزِي او نه وا نه وري بلکه ته ولسيږي او نورو خدايانو ته سجده
۱۷ وکړي او دَ هغو عبادت وکړي ۱۷ نو زه تاسو ته نن ورځ په کاته وايم
چه تاسو به ضرور هلاک شئِ په هغي مزکي بانْدِ هغه چه ته له اُرْدُن
۱۸ نه پوري وزي چه دفتر ئي کړي ته به ورځي اوږدي نه کړي ۱۸ زه نن
ورځ په تاسو بانْدِ آسمان او مزکه شاهدان کوم چه ما ژوندون او مرګ
اوبرکت او لعنت ستاسو دَ وړانْدِ کښيښودل نو ته ژوندون غوره کړه
۱۹ چه ته او ستا اولاد ژوندِي پاتي شئِ ۱۹ چه ته خداوند الله خپل دوست
لري او دَ هغه آواز ته واوري او ورسره پيوست شي چه هم هغه
ستا ژوندون او هغه ستا دَ ورځو اوږديدل دِي چه ته به هغي مزکي
بانْدِ هغه چه خداوند ستا له پلار نيکونو ابراهام او اسحاق او يعقوب سره
قسم کړي وه چه هغو له به ئي ورکړي استوګي شي ❊

# يودېرشم باب

۱ ا نو موسیٰ لاړ او دا خبري ئي ټولو بنيِ اسرائيلو ته ووېلي ۲ او ور ته
۲ ئي ووېل چه زه نن ورځ دَ شپږو شلو کالو يم نور توان دَ وتلو نه لرم
۳ او خداوند هم ما ته ووېل چه له دي اُرْدُن نه به پوري غاړي ته ځي ۳ خداوند
ستا الله دَي هغه به ستا دَ وړانْدِ پوري وزي هغه به هغه قامونه ستا
دَ وړانْدِ فنا کړي نو ته به ئي وارث شي لکه چه خداوند ويلي دِي يَشُوع به
۴ ستا دَ وړانْدِ پوري وزي ۴ او خداوند به ور سره وکړي لکه چه له سيحُون
او عُوج بادشاهانو دَ اموريانو سره هغه چه هلاک ئي کړل او دَ هغو له
۵ مزکي سره ۵ نو خداوند به ئي ستاسو دَ وړانْدِ پرېږدِي نو به شان دَ ټولو
۶ حکمونو هغه چه زه ئي تاسو ته حکم کوم ورسره کار وکړئ ۶ مضبوط
شئِ او زړه ور شئِ دَ هغو له مخونو نه مه وېرېږئ او مه ترهيږئ ځکه
چه خداوند الله ستا دي چه تا سره ځي له تا نه به غفلت ونه کړي او
۷ تا به پري نږدِي ۷ نو موسیٰ دَ ټولو اسرائيلو دَ سترګو دَ وړانْد يَشُوع
وباله او ور ته ئي ووېل مضبوط شه اوزړه ور شه ځکه چه ته به

له دي قام سره به هغي مزكي كښ هغه چه خداوند دَ دوي له پلار نيكونو
سره قسم كړي دي چه ور به ئي كړي داخل شي او ته به ئي وارث كړي
۸ ۸ او خداوند هغه دي چه ستا دَ وړاندِ ځي هغه به له تا سره وِي له
تا نه به غافل نه شي او نه به تا پريږدي ته مه ويريږه او مه ترهيږه
۹ ۹ او دا تورنت موسیٰ وليکه دا دَ بني‌لاوِي كوهينانو ته چه دَ خداوند
دَ عهد صندوق پورته كونكي وُو او دَ اسرائيل ټولو مشرانو ته ئي وسپاره
۱۰ ۱۰ او موسیٰ ورته حكم وكړ و ئي ويل په آخر دَ هريو اووو كالونو كښ دَ
۱۱ خلاصِي دَ كال په مقرّر وقت كښ دَ جونګړو په اختر كښ ۱۱ هركله چه
ټول اسرائيل دَ ښكاره كيدلو دَپارَ راشي ستا دَ خداوند الله دَ وړاندِ په
هغه ځاي كښ چه دي ئي غوره كړي نو دا تورنت دَ ټول اسرائيل دَ
۱۲ وړاندِ دَ هغو په غوږونو كښ ولوله ۱۲ قام سړي او ښځي او هلكان
او مسافر هغه چه ستا په دروازو كښ دی جمع كړه چه واورِي
او زده ئي كړي چه ستا له خداوند الله نه وويريږي او بيدار شي چه
۱۳ دَدي تورنت په ټولو خبرو عمل وكړي ۱۳ او دَدوي اولاد هغه چه نه پوهيږي
وا ئيُ وري او زده ئي كړي چه ستاسو له خداوند الله نه ټولي ورځي هغه
چه دوي په كښ ژوندي وِي وويريږي په هغي مزكي باندِ چه تاسو له
اردن نه ورپورِي ووزئِ چه دفتر ئيُ كړئِ
۱۴ ۱۴ او خداوند موسیٰ ته وويل ګوره ستا ورځي نزدي شولي چه ته مړ
شي ته يَشوُع و بوله او دَ جماعت په خيمي كښ حاضر شئِ چه زه ور ته
حكم وكړم نو موسیٰ او يَشوُع لاړل او دَ جماعت په خيمي كښ حاضر شول
۱۵ ۱۵ نو خداوند په خيمي كښ دَ وريځي په ستني كښ ښكاره شه او دَ وريځي
۱۶ ستنَ دَ خيمي په دروازي ودريدله ۱۶ او خداوند موسیٰ ته وويل چه ګوره
ته به له خپل پلار نيكونو سره ځملي او دا قام به ودريږي او دَ نورو پردو
خدايانو دَ هغي مزكي پسي به بدكاري وكړي چه هلته دي دَ هغو په
مينځ كښ ورزي او ما به پريږدِي او هغه عهد چه ما ورسره تړلي وه

۱۷ مات به کړي ۱۷ نو خما قهر به په هغي ورځي کښ په هغه بل شي او
زه به ئې پرېږدم او خپل مخ به ترې پټ کړم نو دوي به ونغړدلي شي او ده
ته به ډېر شرونه او سختئ ورسيږي خوچه په هغي ورځي کښ به
دي وائي چه خما يهوه خما په مينځ کښ نه دي خه؟ چه دا شرونه ما
۱۸ ته ورسيدل ۱۸ او زه به په هغي ورځي کښ خپل مخ پټ کړم دَ
ټول شر له سبب نه هغه چه ده کړي وه هرکله چه نورو خدايانو
۱۹ ته گرزيدلي وه ۱۹ نو اوس تاسو دَ خپل ځان دَپارَ دا سندره وليکئ
او بني اسرائيل ته ئې زده کړه دَ هغو په خولو کښ ئې کيږده چه خما
۲۰ دَپارَ دا سندره په بني اسرائيل باندِ شاهده شي ۲۰ ځکه چه زه به
ئې په هغي مزکي کښ چه ما دَ دوئ له پلار نيکونو سره قسم کړي دے
چه شوده او شات په کښ بهيږي داخل کړم نو دوي به خوراک
وکړي او ماړه به شي او غټ به شي بيا به نورو خدايانو ته وجاروزي
او دَ هغو عبادت به کوي او ما به په قهر کړي او خما عهد به مات
۲۱ کړي ۲۱ نو داسي به وشي چه ډېر شرونه او سختئ ور ورسيږي نو دا
سندره به دَ هغه دَ وړاندِ شاهدي لي ځکه چه دَ هغه دَ اولاد له خلو
نه به نه هيريږي ځکه چه زه دَ ده په فکر باندِ هغه چه نن ورځ ئې
دي فکر کوي پخوا له هغي نه چه زه ئې په هغي مزکي داخل کړم لکه
۲۲ چه ما قسم کړي دي پوهيږم ۲۲ نو موسیٰ دا سندره په هغي ورځي کښ
۲۳ وليکله او بني اسرائيل ته ئې زده کړله ۲۳ او يَشُوع دَ نُون ځوي ته
ئې حکم وکړ او وئې ويل چه سخت شه او زړه ور شه ځکه چه ته به
بني اسرائيل په هغي مزکي کښ بوزي هغه چه دَ هغي دَپارَ ما ورسره
قسم کړي دي او زه به له تا سره يم
۲۴ ۲۴ او داسي وشول چه هرکله چه موسیٰ دَدي تورېت خبري ئې تمامي
۲۵ په کتاب کښ وليکلي ۲۵ نو موسیٰ لاويانو ته چه دَ خداوند دَ عهد صندوق
۲۶ يورته کوونکي وُو حکم وکړ وئې ويل ۲۶ چه دا کتاب دَ تورېت واخلئ او دَ

خپل خداوند الله دَ عهد په صندوق کښې ئې يو خوا ته کيږدئ چه هلته
په تاسو بانډې شاهد شي ۲۷ ځکه چه زه ستاسو په ياغيتوب او کردن کشئ ۲۷
پوهيږم ګوره چه نن ورځ چه زه له تاسو سره ژوندي يم تاسو له
خداوند نه ياغي شوي يئ نو ځما له مرګ نه ورستو به څومره زيات وکړئ ـ
۲۸ ما ته دَ خپلو قامونو ټول مشران او خپل منصبداران جمع کړئ چه ۲۸
دَ هغو په غوږونو کښې زه دا خبري ووايم او په هغو بانډې آسمان
او مزکه شاهدان کړم ۲۹ زه پوهيږم چه ځما له مرګ نه ورستو به ۲۹
بيخي خراب شئ او له هغي لاري نه چه ما ئې تاسو ته حکم کړي دي
وبه جاروزئ او تاسو ته به په آخرو ورځو کښې شر ورسيږي ځکه
چه تاسو به دَ خداوند دَ وړاندې شر کوئ څو چه دَ خپل لاس په کارونو
ئې په قهر کړئ ۳۰ نو موسیٰ دَ اسرائيل دَ ټول جماعت په غوږونو کښې ۳۰
د دي سندري خبري ووېلي *

## دوديرشم باب

آ اي آسمانونو واورئ چه وکړم وينا اي مزکي ته ونغوره دَخولي خبر ځما ۱
۲ ځما تعليم به دَ باران په شان وريږي ځما وينا به دَ شبنم په شان توئيږي ۲
لکه پخني چه په شينکي وي پريوتلي لکه شيبه چه په سبزئ وي وريدلي
۳ چه زه ناري کړم په نامه دَ يَهُوَاه تاسو وکړئ بزرګي ځمونږ دَ الله ۳
۴ هغه ګټ دي او کارونه ئې په کمال دي ټولي لاري دَ هغه جاه وجلال دي ۴
په کښې ظلم نشته يَهُوَه دامانت دي دي رښتيني دي منصف په عدالت دي
۵ هغوي په خپله خپل ځان واخست خراب کړ له فرزندي نه ئې په خپل ځان بانډې عتاب کړ ۵
دائې عيب دَي چه هغوي پر کجروان دي په خپل پښت کښې دغه ټول کردن کشان دي
۶ تاسو به داکوئ دَ يَهُوَه بدلونَ اي قامَ چه يي بيعقلَ او بيعلمونَ ۶
نه دي څه هغه ستا پلار چه ته ئې اَزيا کړي اونه ته ئې کړي قايم اونه ته ئې پيدا کړي
۷ ته کړه ياد پخواني عمر په فکرونَ هم کلونَ هم پښتونه په پښتونَ ۷
له خپل پلاره کړه تپوس چه تا خبر کړي خپل مشرانو ته چه حال درته اظهر کړي

٨ ٨ په ویش کولو کښې به قامونو يَهُوَاَ — په بيلتون کښې چه بنيِ ادم ئي کړل جدا
نو مقرري ئي کړلي پولي دَ قامونو — په شان دَ اسرائيلو چه وُو به شمارونو
٩ ٩ ځکه چه خپل قام دي دَ يَهُوَهَ په حصّه — يعقوب ئي دي کچ کړي په خپله ورثه
١٠ ١٠ بيائي موند دَ شاړي مزکي په بيابان کښې — په وِجاړي چپ چاپ شوي ملک ويران کښې
تِر چارچاپير شه ورته ئي وکړله ښوونه — لکه کسي دَ خپلي سترګي ئي وساتنه
١١ ١١ لکه شر چه خوځوي دي خپله جاله — په خپلو بچو باندِ دي آلوزي برحاله
خپل سانکونه به خواره کړي او دوي به وا خلي — په وزرونو به ئي کړي پورته دوي به وا خلي
١٢ ١٢ هم په دي شان واحد يَهُوَهَ ئي شه رهبر — اوچه ورسره پردي خدايان نه وه همسر
١٣ ١٣ هغه ئي کړ دَ مزکي په لوړو باندِ سور — نوحاصلات ئي دَ پټيې وخوروه پرِ نور
اوله ګټ نه ئي پرِ و رودول شاتونه — او له سخت کاڼي نه ئي پرِ وڅښکول تيلونه
١٤ ١٤ او کچهه دَ غوا هم دَ ګډو بزو پيونه — دَ برّو وازده چه باشان کښې پيدا وُونه
دَ ګډو بزو ځار به ماغزه دَ غنمونو — ښه سره شيره دِ وڅښکله دَ انګورونو
١٥ ١٥ نو يشرون ځورب شه اولتي ئي ووهلي — ته ځورب اوغټ اوپه ځربښت کښې پټ شولې
نو هغه الله خپل خالق له پريښوده نه — او دَ خپل نجات ګټ ئي حقير نوروګڼړه نه
١٦ ١٦ نو پردو خدايانو ته ئي دي کړ غيرت ناک — او له مکروهاتونه ئي دي کړ غضب ناک
١٧ ١٧ هغوي خو وکړي قرباني دَ شيطانانو — نه دَ الله بلکه دَ نورو معبودانو
هغوي وُو نوي چه بخوانيِ نه پيژندل — اوس شو معلوم چه ترستا پلار نيکه نه ويريدل
١٨ ١٨ غافل شوي له هغه ګټ چه ئي ته کړلي پيدا — او هير دِکړ الله چه ئي ته کړلي بنا
١٩ ١٩ چه يَهُوَهَ وليدل تِر شه په نفرتونه — زامنو لونړو ته ئي شه په غضبونه
٢٠ ٢٠ مخ به ترِ نه پټ کړم هغه وکړ دا کلام — زه به وګورمَ څه به شي دَ دوي انجام
دي دَ پارَ چه دوي دِي کاږه نسلونه — هلکان چه په کښې نشته امانتونه
٢١ ٢١ په هغوي چه خدايان نه دِي زه ئي کړم غيرتناک — په خپلو باطلو خبرو ئي زه کړم غضب ناک
نو زه به ئي دَ بي قامو په غيرت کښې واچومَ — او په يو بيعقل قوم سره به زه دوي خفه کړم
٢٢ ٢٢ ځکه چه بل شوي دي ځما له قهر اور — او ترِ لاندِني دوزخ به جل بل شي لا نور
اومزکه اوحاصلات به ئي خوړل شي — اودَ غرونو تول بخونه به سيزل شي

زه به په هغوي باندِ زيات کړم دَ دوي وبال
او به دوي کښې به خپل غشي کړم استعمال

۲۳ له لوږې نه به وچ شي له کرمۍ نه به سوزان
سخته وبا به پرِراشي او درندګان ۲۳

۲۴ او تيز به کړمَ زه په دوي دَ دوي غاښونه
او پرې به بدم په دوي دَ زهرو ړک مارونه ۲۴

۲۵ توره له بهر نه په کوټو کښې دهشتونه
زلمي پيغلې سپين ږيري شيرخواره هلاک شونه ۲۵

۲۶ ما وويل زه به يې يوخوا بل خوا تار په تار کړم
دَ خلقو له منځ به يې زه ورک ذکر اذکار کړم ۲۶

۲۷ که دَ دښمن له قهرَ مِ نه وي فکرونه
هسې نه وي چه دَ دښمن يې کړي خيالونه ۲۷

هسې نه وي چه وائي هسک موشو لاسونه
او يهوَه کړي نه دي دغه ټول کارونه

۲۸ خکه چه خالي دي له تدبيرَ دغه قام
عقل په کښې نشته دَي دَي تدبير يې خام ۲۸

۲۹ کاش که دوي هوښياران وي او دوي پوهيدلي
او دَ خپل عاقبت فکر هم دوي کولي ۲۹

۳۰ يو به زرتنه په څه شان سره تښرل
او دوو تنو به لس زره په څه شان زغلول ۳۰

که چرې خپل کټ هغه دوي نه وي خرڅ کړي
او يهوَه دَ هغوي دوي نه وي بنديان کړي

۳۱ چه څموږ کټ نه دي دَ دوي دَ کټ په شان
او په دې باندِ قايل دي څموږ دښمنان ۳۱

۳۲ چه دَ دوي تاکستان دي دَ سَدوم تاکستان
او دي هغه دَ عموراه دَ پټو په شان ۳۲

دَ هغو انګور لکه دَ ترخې دِي انګور
غوشې يې ترخې دِي لکه خوله وِي دَ رنځور

۳۳ دَ هغو شراب دَ اژدهاو زهر قاتل دِي
او هغه زهر دَ وروکو مارانو هلاهل دِي ۳۳

۳۴ ولې دا ټول ما څخه نه دِي ذخيره
سر په مُهر کړي شوي څما په خزانه ۳۴

۳۵ بدل اخستل او هم سزا ورکول
څما کار دې په وقت به يې پښې شي په خوځېدل ۳۵

چه دَ دوي دَ خراب حالې ورځه ده نيزدې
چه په دوي به زر واقع شي دي راتلونکي حادثې

۳۶ خکه چه يهوَه به دَ خپل قام کړي عدالت
دَ خپلو بندګانو به حال به کړي رحمت ۳۶

هرکله چه وګوري چه لاړ شه دَ دوي توان
باقي نه دي پاتي شوي آزاد دِي که تيديان

۳۷ وبه وائي چه څه شول دَ دوي خدايان
هغه کټ چه دوي وُو اميدواران ۳۷

۳۸ هغه چه دَ دوي دَ ذبحو غوړ به يې خوړل
او شراب دَ قربانۍ دَ توپولو به يې څښل ۳۸

اوس دِ هغه پاسې ستاسو شي دِ چاره کار
(رادِ شي هغه) او ستاسو شي دِ مددګار

۳۹ زه يم هو هم زه يمه اوس وکړه ته نظر
او نشته بل الله هم له ما سره همسر ۳۹

زه يې وژنم او هم زه يې ژوندي کوم
زه يې جوړوم او هم زه يې زخمي کوم

داسي هیڅوک نشته چه له لاسَ مِ کړي خلاص — نه مِ شته همسر چه راسره وکړي اخلاص
۴۰ زه خپل لاس پورته کوم په لوري دَ آسمان — او وایم چه ژوندي یمَ زه تر جاودان
۴۱ که خپله توره ځلیدونکي تیره کړمَ — او عدالت نه په خپل لاس کښ ونیسمَ
خپلو دُښمنانو له به ورکړمَ بدلا — او خپل کینه کوونکي له به ورکړمَ سزا
۴۲ زه به مست کړمَ خپل غشي په وینه — او ځما توره به دَ مقتولانو غوښي خوړینه
سره له وینو (او نورهم) دَ قیدیانو — دَ ببرو سرونو او له دُښمنانو
۴۳ اي فرقو دَ قام سره ئې وکړئ ستائل — ځکه چه دي به دَ خپلو بندګانو دَ خون ولخلي بدل
او له خپلو دُښمنانو نه به واخلي انتقام — بخښنه به وکړي په خپلي مزکي په خپل قام
۴۴ نو موسیٰ راغي او ټولي خبري دَ دي شعر ئې په غوږونو دَ قام کښ وویلي
۴۵ هغه او یَشُوع دَ نون ځوي ۴۵ او هرکله چه موسیٰ ټولو اسرائیلو ته
۴۶ دَ دي ټولو خبرو له ویلو نه وزګار شه ۴۶ ور ته ئې وویل چه خپل
زړونه متوجّهه کړئ ټولو خبرو ته هغه چه نن ورځ زه په تاسو شاهدي
لم چه تاسو ئې خپل اولاد ته حکم وکړئ چه بیدار شي چه عمل وکړي
۴۷ دَ دي تورات په ټولو خبرو ۴۷ ځکه چه ستاسو دَ پارَ باطل کار نه دي
بلکه دا ستاسو ژوندون دي او په دي کار سره به تاسو وږدي کړئ
۴۸ ورځي هغه چه تاسو له اَردَنْ نه وراپوري وزئ چه دفتر ئې کړئ ۴۸ او
۴۹ یَهوَهْ له موسیٰ سره هم په هغي ورځي خبري وکړي و ئې ویل ۴۹ دَ دي
عِبارِیمِ په غره وخیژه غر دَ نبو چه دَ مواب په مزکي کښ هغه
چه اریحو ته مخامخ دي او دَ کنعان مزکي ته هغه چه زه به ئې
بنيِ اسرائیلو له په دفتر سره ورکوم وګوره او په هغه غره کښ
چه ته به ورخیژي مړ شه او له خپل قام سره پیوست شه لکه
چه ستا ورور هارون مړ شه دَ هُور په غره کښ او له خپل قامَ
۵۰ سره پیوست شه ۵۰ ځکه چه تاسو دَ بنيِ اسرائیلو په منځ کښ دَ
مریبه قادش اوبو ځنګه دَ سین په بیابان کښ ځما نقصان وکړ ځکه
۵۱ چه تاسو دَ اسرائیلو په منځ کښ ځما پاکي ونه کړه ۵۱ نو ته به هغه

مزکه چه ور ته مخامخ ده کوري ولې ته به هلته نه داخليږي هغې مزکې
ته هغه چه زه به يې بني‌اسرائيلو له ورکړم *

## دري ديرشم باب

١ دا هغه برکت دي چه موسیٰ مرد دَ الله پخوا له خپل مرګ نه ١
بني‌اسرائيلو ته يې وبخښه ٢ او وئې ويل چه له سينا نه خداوند راغي ٢
او له سعير نه يې پرِ طلوع وکړ او دَ فاران له غره نه وځليده او
له زرګونو مقدّسو سره راغي او له خپل ښي لاس نه يې دَ دوديْ دَپارَ
دَ اور شريعت وه ٣ نو له تمام سره مينه لري دَ هغو ټول مُقَدَّسان ٣
ستا په لاس کښ دي او هغوي ستا پښو ته ناست دي ستا خبري
به مني ٤ موسیٰ مونږ ته دَ شريعت حکم وکړ چه دَ يعقوب دَ جماعت ٤
ميراث وي ٥ او هغه په يشرون کښ بادشاه وه په هغه وقت چه ٥
سرداران دَ قام او فرقي دَ اسرائيلو سره جمع شول ٦ چه روبين دِ ژوندي ٦
وي نه دِ مري او سړي دِ يې لږ نه شي ٧ او دا يې يهودا ته وويل چه ٧
اي خداوند دَ يهودا آواز واوره او خپل قام ته يې راوله لاسونه دِ يې دَ
ځان دَپارَ بس وي او خپلو دُښمنانو ته يې په مرسته اوسه ٨ او لاوي ٨
ته يې وويل چه ستا تُميم او ستا اوريم دِ ستا دَ پاک سړي دَپارَ
وي هغه چه تا په مَسَّه کښ ازميلي دي او دَ مريبې اوبو څخه دِ
ورسره جګړه کړي دَه ٩ هغه چه خپل پلار او خپلې مور ته يې وويل ٩
چه زه يې نه وينم او په خپلو وروڼو يې اقرار ونه کړ او خپل اولاد
يې ونه پيژند ځکه چه هغو ستا کلام وساته او ستا عهد يې ومانه
١٠ ستا حکمونه به يعقوب ته او ستا شريعت به اسرائيل ته زده کړي ١٠
او ستا دَ وړاندِ به بخور کيږدي او دَ سيزلو قرباني ستا په مذبح ١١ اي ١١
خداوند مال له يې برکت ورکړه او دَ لاسونو له کار نه يې راضي شه او دَ
برابري کونکيو او کيني لرونکيو ملا يې ماتې کړه خوچه پا نه سي
١٢ او بني‌يمين ته يې وويل دَ خداوند دوست به په سلامتيا سره ١٢

هغه ځنګه اوسي او کړۍ ورڅ به په هغه سوري کوي او د اوږو د
تېښنو تر مينځ به ئې اوسي
١٣ ١٣ او يوسف ته ئې وويل چه د هغه مزکه دِ له يَهوَه نه مبارکه
شي د آسمان له تحفو نه له پرخي نه او چه لاندِ د ژورِ له سيند نه
١٤ ده ١٤ او د نمر له تحفوحاصلاتو نه او د سپوږمي له تحفو پوکيدليو نه
١٥ ١٥ او د پخوانو غرونو له قيمت بهاؤ نه او د ابدي غونډو له تحفو نه -
١٦ ١٦ او له تحفو د مزکي او د هغي له ډکوالي نه او له رضامنديِ د هغه
چه په بوټي کښ ئې استوګه لرله نو را دِ شي د يوسف په سر او په تالو
١٧ ئې چه جدا کړي شوي د خپلو وروڼو وه ١٧ د هغه د ورېبي پيدا شوي
غواړه په شان ئې خيوه ده او ښکرونه ئې ښکرونه د ګينډي دِي چه
په هغو سره به قامونه په يو ځل د مزکي تر انتها پوري وهي او دوي
لس زره د افرايم او زرګونه د منسي دِي
١٨ ١٨ او زبولن ته ئې وويل چه اي زبولن ته په خپل بهر تلو خوشحال
١٩ شه او ته اي يسّاکار په خپلو خيمو کښ ١٩ قامونه به غره ته وبولي
هلته به د رښتيني ذبايح ذبح کړي ځکه چه دوي به له ډېروالي د سيندونو
او له خزانو پټو نه په شګو کښ وروي
٢٠ ٢٠ او جاد ته ئې وويل مبارک دي هغه چه د جاد لوئي وکړي د مزري
٢١ په شان کښيني او ماتوي متي سره له تالو د سر ٢١ او اوله حصّه
ئې د ځان د پاره وکتله چه هغه هلته د شرع ورکونکي په ويش کښ
سلامت پاتي شه نو د قام له سردارانو سره راغي چه د خداوند په حق
او حکمونو ئې سره له اسرائيل عمل وکړي
٢٢ ٢٢ او دان ته ئې وويل چه دان د مزري بچي دي چه له باشان
٢٣ نه به ټوپ کړي ٢٣ او نفتالي ته ئې وويل چه اي نفتالي له رضامنديِ
نه موړ شه او د خداوند له برکت نه ډک شه او مغرب او سُويل دفتر کړه
٢٤ ٢٤ او آشير ته ئې وويل چه آشير دِ له زامنو نه مبارک وي چه د

خپلو ورونړو مقبول دِ وِي او خپلي پښي دِ په تيلو کښ ډوبي کړِي
۲۵ ۲۵ ستا پنړي دِ اُسپنه او زيړ وِي او ستا دَ ورځو په شان دِ ستا
۲۶ قوّت وِي ۲۶ اي يشورونَ دَ الله په شان چه ستا په مرسته کښ په
۲۷ آسمان سور دَي او آسمان دَ هغه په لويئِ کښ دي نشته ۲۷ قديم
الله پناه او ابدِي متي دَ لاندِ نو دُښمنان به ستا دَ وړاندِ وشړِي او
۲۸ وايِي به چه هلاک ئي کړه ۲۸ نو اسرائيل به يوازي په امن سره اوسيږي
چينه دَ يعقوب به ئي په مزکي دَ غلي او دَ شراب شي او آسمان به ئي
۲۹ پړ پرخه وَرَوِي ۲۹ ته نيک بخت ئي اي اسرائيلَ ستا په شان څوک دي اي
قامَ چه خلاص کړي شوي دَ خداوند يئِ ستا دَ مرستي ډال او ستا دَ لويئِ
تُوره دَه نو ستا دُښمنان به ستا خوشامديان کړي او ته به دَ هغو
په لوړو ځايونو تلل وکړي *

# څلور ديرشم باب

۱ ۱ او موسیٰ دَ مواب له ميدانونو نه دَ نبو په غره دَ پسګاه په څوکئِ
چه يَريحُو ته مخامخ ده وخوت نو ټوله مزکه ئي له جلعادَ تر دانَ پوري ورته
۲ وښيله ۲ او نفتالي ټول او دَ افرائيم او دَ مَنَسّي مزکه او دَ يَهُودا ټوله
۳ مزکه دَ مغرب تر سيند پوري ۳ او سويل او دَ يَريحا دَ دري ميدان
۴ چه ښهر دَ تجورو دَي تر صوعرَ پوري ۴ او خداوند ورته وويل چه
دا هغه مزکه دَه چه له ابراهام او اسحاق او يعقوب سره مِ قسَمْ
وکړ وم ويل چه ستا نسل له به ئي ورکړم ستا په سترګومِ تاته
۵ وښيله ولي ته به هلته نه ورپوري ووزي ۵ نو موسیٰ بنده دَ خداوند
۶ هلته وفات شه دَ خداوند دَ ويلو په شان دَ مواب په مزکي کښ ۶ او
هغه ئي دَ مواب دَ مزکي په دري کښ بيتِ فغُور ته مخامخ ښخ کړ او
تر نن ورځي پوري هيڅوک دَ هغه قبر نه پيژني
۷ ۷ او موسیٰ په هغه وقت چه وفات شه دَ شپږو شلو کالونو وه
۸ چه نه ئي په سترګو دوند وه او نه ئي تازګي تلي وه ۸ نو دَ مواب په

میدانونو کښي بنيِ اسرائیلو موسیٰ دیرش ورځي و ژاړه نو ورځي دَ ماتم
۹ دَ موسیٰ دَ ژړا پوره شوي ۹ او یَشُوع دَ نون ځوي دَ حکمت له روح نه ډک
شه ځکه چه موسیٰ په هغه باندِ خپل لاسونه اچولي وُو نو بنيِ اسرائیلو
هغه واوریدل او لکه چه خداوند دَ موسیٰ حکم کړي وه عمل به ئې پرِ وکړ
۱۰ ۱۰ او پس له هغي په بنيِ اسرائیلو کښي دَ موسیٰ په شان هیڅوک
نبي پورته شوي نه دي هغه چه خداوند ورسره مخامخ پیژندګلي وکړه۔
۱۱ ۱۱ په ټولو نښو او معجزو کښي هغه چه دي خداوند استولي وه چه په
هغو سره دَ مصر په مزکي کښي له فرعون سره او له ټولو مریونو سره
۱۲ ئې او ټولي مزکي سره ئې کار وکړي ۱۲ او په ټول قوّت ناک لاس کښي او
په ټول لوي هیبت کښي هغه چه موسیٰ دَ ټولو اسرائیلو دَ سترګو
دَ وړاندِ ئې کړي وُو ٭

# یشوع

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو کښ ترجمه کړي شه




T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد الرحمان او غلام جيلاني کاتب

د مطبع برتش و فارن بيبل سوسيتي

# JOSHUA, IN PASHTU.

MADE IN ENGLAND.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

1895.

Catalog No. A: 131: 2 / B1895₂

Family INDO-EUROPEAN

Sub-Family INDO-IRANIAN

Branch IRANIAN

Group NON-PERSIC

Language PAṢHTŌ

Dialect

Locality

Contents Joshua - Job (Vol. II)

Version

Translator

Published by B.F.B.S.

Place LONDON

Date 1895

Accession No. $805_2$

Accession Date Sept 1 1931

Price set of four volumes $1.55

# دَ يشوع کتاب

## اول باب

۱ او پس له مرګَ دَ موسىٰ دَ خداوند دَ بندهٔ داسي وشول چه ۱
خداوند يشوع دَ نون ځوي خادم دَ موسىٰ ته وفرمايل او وَ ئي
ويل
۲ چه موسىٰ ځما بنده مړ شه نو اوس پاڅه له دي يردنَ ۲
پوري ووزه ته او ټول دا اُمّت هغي زمکي ته چه زهٔ ئي دوي ته
ورکوم هو بني‌اسرائيل ته ۳ هر ځاي چه ستاسو دَ پښي تلي ۳
ئي ودرېږي تاسو ته مِ درکړي دَي لکه چه ما موسىٰ ته ويلي دِي
۴ له بيابانه او له دي لبنانه او تر لوي درياب پوري تر ۴
ستر دريابِ فراته پوري ټوله زمکه دَ حِتّي او تر لوي قعرِ درياب
پوري دَ نمر پرېواته طرف ته به ستاسو سرحد شِي
۵ هيڅ سړَي به ستا په مخ کښ وَ نه درېږي په ټولو ورځو ۵
دَ ژوندانه ستا کښ لکه چه زه دَ موسىٰ سره وم هسي به له تا
سره يم پري به دِ نه‌بږدم نه به دِ ترک کړم
۶ تش تکړه شَه او مردانه شَه ځکه چه ته به دي اُمّت ته ۶
ميراث ورکوي هغه زمکه چه ما دَ هغو پلارونو سره قسم وخوړ
چه ور به ئي کړم ۷ قوِي او دلاور شَه ټول هغه تورٰيت چه موسىٰ ځما ۷
بنده تا ته حکم درکړ و ئي ساتي او عمل پرِ وکړي ور نه په
ښِي يا په کيڼ لوري مه ګرزه دَ دي دَپاره چه بهره‌مند شي هر
چرته چه درومي
۸ دا کتاب دَ تورٰيت دِ ستا له خولي نه لرِي نه شِي لېکن ۸
ته به په کښ ورځ او شپه فکر کوي تا چه عمل پرِ کوي او وَ ئي

ساتي په موافق دَ ټولو چه په کښې ليکلي دِي ځکه چه هغه وقت
به ستا لار لايقه شي او هغه وقت به ته بهره مند شي
۹ ۹ تا ته ما حکم کړي نه دَي څه؟ چه تکړه شه او دلاور
شه مه ويريږه او مه حيرانيږه چه خداوند الله ستا په هر
ځاي کښې چه ته درومي له تا سره دَي
۱۰ ۱۱ ۱۰ او يشوع دَ اُمّت مشرانو ته و فرمايل و ئې ويل ۱۱ چه
دَ لښکر په منځ کښې تېر شئ او اُمّت ته و فرمايئ او ووايئ
چه خوراک تيار کړئ ځکه چه دَ دريو ورځو په مُدې کښې به
تاسو له دې يردنَ پورې لاړ شئ دَ هغې زمکې دَ ننه وتلو
او دَ اخستلو دَپارَ چه خداوند الله ستاسو ئې درکوي چه
وائې خلئ
۱۲ ۱۲ او روبنيانو او جاديانو او دَ منسّي نيم قوم ته يشوع
۱۳ حکم وکړ و ئې ويل چه ۱۳ ياد کړئ هغه کلام چه تاسو ته موسیٰ
بنده دَ خداوند و فرمايه و ئې ويل چه خداوند ستاسو الله تاسو
۱۴ ته آرام درکوي او دا زمکه به هم درکوي ۱۴ ستا ښځې او بچي او څاروي
دِ په هغه زمکه کښې پاتې شي چه تاسو ته موسیٰ پورې غاړه دَ
يردنَ درکړي ده او تاسو وسلې تړلې دَ خپلو وروڼو په منځ کښې
به پورې ووزئ ټول جباران دَ قوت به هغوي ته مدد ورکوي
۱۵ ۱۵ تر هغه وقت پورې چه خداوند ستاسي وروڼو ته
آرام وبخښي لکه چه تاسو ته او هغوي به هغه زمکه په ميراث
واخلي چه خداوند ستاسو الله ئې هغوي ته ورکوي نو تاسو به
خپلې موروثي زمکې ته را وګرځئ او په ويراثت به ئې واخلئ هم
هغه چه موسیٰ بنده دَ خداوند تاسو ته درکړي ده په پورې غاړه
دَ يردن نمرخاته طرف ته
۱۶ ۱۶ او هغوي يشوع ته ځواب ورکړ و ئې ويل هر څه چه تا

فرمایلي دي مونږ به پرِ عمل وکړو او هر چرته چه ته مو آستوي
۱۷ مونږ به دروسو۔ لکه چه مونږ دَ موسیٰ هره خبره آورید له هسي
به ستا آورو تش خداوند ستا الله دِ له تا سره وِي لکه
چه له موسیٰ سره وه
۱۸ ۱۸ هر سړي چه ستا له مخه یاغِي شِي او ستا کلام وانه وري
یعني چه و ئي فرمائي سړ به کړي شِي تش تکړه اوسه او دلاور شه *

# دویم باب

۱ آ یشوع دَ نون ځوي له شِتّیم نه دوه کسان په پټه واستول
و ئي ویل چه لاړ شئِ وګورئِ هغه زمکه او اریحا او دوي
لاړل دَ یوي زناکاري ښځي کور ته ورغلل چه نوم ئي راحب
۲ وُه او هلته څملاستل ۲ او دَ اریحا بادشاه ته وویلي شول
چه ګوره نن شپه دَ بنِي اسرائیل نه دَ زمکي دَ خبر آخستلو دَپارَ
ځو کسان راغلل
۳ ۳ او دَ اریحا بادشاه راحبي ته ورواستول و ئي ویل هغه
سړي چه درکره راغلي دِي په کور کښ درننه وتلي دِي باهر
ئي را و باسه ځکه دوي دَ ټولي زمکي دَ خبر دَ آخستلو دَپارَ
راغلي دِي
۴ ۴ او دي ښځي هغه دوه کسان واخستل او پټ ئي کړل
او هغو ته ئي وویل چه هو هغه سړي ما ته راغلل او و مِ
نه پیژندل چه دوي دَ کوم ځاي دِي
۵ ۵ او داسي وشول چه دَ دروازي دَ بندیدلو په وقت چه
لا تیاره وه او هغه سړي باهر ووتل نه پوهیږم چه هغه سړي
به چرته تلي وِي زر ورپسي شئِ ځکه چه وبه ئي نیسئِ
۶ ۶ او دوي ئي پاس په بام وخیژول او دَ سڼو دَ لښتو دَ
لاندِ چه په بام ئي په ترتیب سره ایښي وي پټ کړل

٧ ٧ او هغه سړي ورپسي شول په لار دَ يردن ترګُدره پوري
او هرکله چه ورپسي شوِي ووتل نو دروازي ئي ورپسي بندي کړي
٩ ٨ او له څملاستو نه وړاندِ هغه په بام ور وختله ٩ او هغو
سړيو ته ئي وويل زه پوهيږم چه خداوند تاسو ته دا زمکه
در وبخښله او چه ستاسو دهشت په مونږ باندِ پريوت او چه
دَ تاسو له مخې نه ټول اوسيدونکي دَ زمکي وِيلي کيږي
١٠ ١٠ ځکه چه مونږه اوريدلي دِي چه خداوند دَ بحرِ قلزم اوبه
څرنګ ستاسو په مخ کښ وچي کړي هغه وقت چه تاسو له مصر
نه را ووتلئِ او چه تاسو هغه دواړه بادشاهان دَ اُموريانو چه
له يردنَ پوري غاړه وُو صيحون او عوج نيست کړل
١١ ١١ او چه مونږ واوريدل نو زړونه مو وِيلي شول او ستاسو
دَ وړاندِ په هيڅ سړِي کښ سا پاتي نه ده ځکه چه يهوه ستاسو
الله هغه الله دَي چه پاس په آسمانونو کښ او لاندِ په زمکه
١٢ دَي ١٢ او اوس له ما سره په خداوند قسم وکړئ ځکه چه ماله
تاسو سره مهرباني وکړه چه تاسو هم څما دَ پلار له کورَ سره
مهرباني وکړئِ او ما ته يوه دَ رښتينئ نښه راکړئِ
١٣ ١٣ او چه تاسو څما پلار او څما مور او څما وروڼه او څما
خويندي او هرڅه چه دَ هغو دِي ژوندِي پريږدئِ او څمونږ
١٤ ځانونه له مرګ نه خلاص کړئِ ١٤ او هغو کسانو ورته وويل چه
څمونږ ځانونه دِ ستاسو دَ مرګ په بدلي کښ وِي که چري څمونږ
خبري ظاهري نه کړئِ نو داسي به وشي چه خداوند مونږ ته
دا زمکه راکړي نو مونږ به له تا سره مهرباني او رښتيني وکړو
١٥ ١٥ نو دوي ئي له دريڅي نه په پړي سره کوز زوړند کړل ځکه
چه کور ئي دَ ښهر په ديوال وه او هغه په ديوال اوسيدله
١٦ ١٦ او دي هغوي نه وويل چه تاسو هغه غره ته درومئ هسي

نه چه درسپي شوي دربانډِ راشِي او هلته خپل ځانونو دري
ورځي پټ کړئ تر هغه چه درسپي تلونکي پسته راشي او پس
١٧ له هغه تاسو په خپلي لاري ځئ ١٧ او دي سړو ورته وويل چه
مونږ دِ کړم نه شُو له هغه قسمَ چه درته مو قسم خوړلي دَي
١٨ ١٨ نو کوره هرکله چه مونږ په دي زمکه کښ داخل شُو ته
دغه قرمزي پړي په هغي دريچي کښ چه مونږ دِ ورنه کوز کړي يُو
وتړه او خپل پلار او خپله مور او خپل ورونړه او دَ خپل پلار
ټول کور په خپل کور کښ له خپل ځان سره راټول کړه
١٩ ١٩ او داسي به وشِي چه هرڅوک چه ستا دَ کور له دروازي
نه کوڅو ته ووځي خون به ئي په خپل سر وِي او مونږ به کړم
نه يُو او ټول چه له تا سره په کور کښ وِي خون ئي څمونږ په
سر دَي که چري څوک لاس وروااچوِي
٢٠ ٢٠ او که ته څمونږ دا خبري ظاهري کړي نو مونږ به ستا
له قسم نه چه مونږ له دِ راکړي دَي ناکړم شُو
٢١ ٢١ او دي ووېل لکه چه ستاسي خبره دَه هسي دِ وشِي
او واځي ستول او لاړل او دي هغه قرمزي پړي په دريچه کښ وتاړه
٢٢ ٢٢ او دوي تلل او هغه غره ته ورغلل او هلته دري ورځي
وه اوسيدل تر هغه چه ورپسي شوي راوګرزيدل او ورپسي
شويو په ټولي لاري ولټول او و ئي نه مُندل
٢٣ ٢٣ او هغه دوه سړي راوګرزيدل او له غره نه کوز
شول او پوري شول يشوع دَ نون ځوي څخه راغلل او ورته ئي
٢٤ هغه ټول چه پر تير شوي وُو وښايل ٢٤ او يشوع ته ئي
وويل چه خداوند هغه ټوله زمکه څمونږ په لاس کښ
راکړي ده او ټول اوسيدونکي دَ زمکي څمونږ په مخ کښ
وِيلي کيږي ۞

# دريم باب

١ ١ او يشوع سحر وقتي پورته شه او له شتّيم نه ئې کوچ وکړ
او يردن ته راغلل دي او ټول بنيِ اسرائيل او هلته ئې له
پوري وتلو نه وړاند شپه تيره کړه
٢ ٢ او پس له دريو ورځو داسي وشول چه مشران دَ لښکر
په مينځ کښ تېر شول
٣ ٣ او اُمّت ته ئې وفرمايل و ئې ويل هرکله چه تاسو دَ
عهد صندوق دَ خداوند الله ستاسي لاويان او کوهينان دَ هغه
پورته کونکي وويني نو تاسو له خپل مقام نه کوچ وکړئِ او ورپسي
۴ شئ ۴ مګر ستاسي او دَ هغه په مينځ کښ دِ په قدر دَ دوو
زرو سنګلو پيکروت وي او مه ورنژدې کيږئِ تاچه تاسو
هغه لار چه پرِ ځئِ و پيژنئ ځکه چه تاسو وړاندِ په دي لاري
۵ تللي نه يئِ ۵ او يشوع اُمّت ته وويل چه خپل ځانونه پاک کړئ
ځکه چه صبا به خداوند ستاسو په مينځ کښ عجائب کارونه کوي
۶ ۶ او يشوع کوهينانو ته وويل چه دَ عهد صندوق پورته
کړئِ او دَ اُمّت دَ وړاندِ پوري وځئِ نو دوي دَ عهد صندوق
پورته کړ او دَ اُمّت دَ وړاندِ پوري وتل
۷ ۷ او خداوند يشوع ته وويل چه نن ورځ به ستا لويي
دَ ټول اسرائيل په نظر کښ شروع کړم تاچه دوي پوه شي
چه زه لکه چه له موسیٰ سره وم هسي به له تا سره يم
۸ ۸ او ته هغو کوهينانو ته به و فرمايئِ چه دَ عهد صندوق
پورته کوي نو ووايه هرکله چه دَ يردن دَ اوبو په کنارو راځئِ
۹ نو په يردن کښ به ودريږئِ ۹ او يشوع بنيِ اسرائيلو ته وويل
دلي راشئِ او دَ خداوند دَ خپل الله کلام واورئِ

١٠ ١٠ او يشوع وويل چه تاسو په دي پوه شئ چه حي الله
ستاسو په منځ کښ دَي اوچه ستاسو له وړاندِ نه به کنعانيان
او حتيان او حويّان او پريزيّان اوجرجاشيان او اموريان او
يبوصيان په شړلو سره و شړي
١١ ١١ گوره دَ عهد صندوق دَ ټولو زمکو دَ خاوند ستاسي
په مخ کښ په يردن باندِ پوري وتونکيَ دَي
١٢ ١٢ او اوس له خپل ځان نه دولس سړي دَ اسرائيل له
فرقو نه واخلئِ له هر فرقي نه يو يو سړَي
١٣ ١٣ او داسي به وشِي هرکله چه دَ ټولي زمکي د خاوند
يهوه دَ هغو کوهينانو دَ پښي تلِي چه دَ عهد دَ صندوق پورته
کونکِي دِي دَ يردن په اوبو کښ آرام وکړِي نو دَ يردن هغه اوبه
چه له پاسَ راکوزيږِي نو پريکړِي به شِي او يو ډيرَي به سره ودريږِي
١۴ ١۴ او داسي وشول هرکله چه اُمّت له خپلو کيږديو نه کوچيده
تاچه له يردنَ پوري وځِي او چه کوهينانو دَ عهد صندوق دَ
١٥ اُمّت په مخ کښ پورته کاوه ١٥ اوچه دَ صندوق پورته کونکِي يردن
ته راغلل او دَ کوهينانو پښي چه صندوق ئِي پورته کړِي وه دَ اوبو
په کنارو کښ ډوبي شوي ځکه چه يردن دَ لَوْ په ټولو ورځو کښ
خيلي غاړي ډکوِي
١٦ ١٦ نو هغه اوبه چه له پاسه راکوزيدي ودريدلي او يو
ډيري ودريدلي ډير لري په برابر دَ آدم دَ هغه ښهر چه دَ
ځارتان په لورِي دَي اوچه دَ عراباه درياب ته کوزيدلي يعنی
دَ مالگي درياب ته بيخِي پريکړي شولي او هغه اُمّت مخامخ دَ يريحا
پوري وت
١٧ ١٧ او هغه کوهينان چه دَ خداوند دَ عهد دَ صندوق
پورته کونکي وُو په وچه په مينځ دَ يردن کښ ټينگ ودريدل

او ټول اسرائيل په وچې پورې وتوګئ شه څو چه ټول قوم دَ
يردن له پورې وتلو پُوره تير شول ❊

# څلورم باب

۱ آ او داسې وشوه هرکله چه ټول قوم دَ يردن له پورې وتلو پُوره
تير شه نو خداوند يشوع ته خبره وکړه و ئې ويل
۲ ۲ او له اُمّت نه دولس تنه ځان سره واخلئ له هرې فرقې
نه يو يو سړې او ورته و فرمايئ
۳ ۳ چه دَ يردن له مينځ نه له هغه ځاي نه چه دَ کوهيناو
پښې قايمې شوې دولس کاڼي واخلئ او ځان سره ئې پورې باسئ
۴ او په هغه ځاي کښ ئې کيږدئ چه شپه په کښ تيروئ ۴ او يشوع
هغه دولس سړي راوبلل چه له بني‌اسرائيلو نه ئې مقرّر کړل
له هر فرقې نه يو يو سړې
۵ ۵ او يشوع ورته وويل چه دَ خداوند الله خپل دَ صندوق
په مخ کښ پورې وزئ دَ يردن په مينځ کښ او له تاسو نه دِ هر
يو سړې په خپل اوږې باندِ يو يو کاڼې پورته کړي په شمار دَ
فرقو دَ بني‌اسرائيلو
۶ ٦ چه دا ستاسو په مينځ کښ نښه ښي چه صبا ستاسو
۷ ځامن پوښتنه وکړي چه دغه کاڼي دَ څه دَپارَ دِي ۷ نو تاسو به
ورته ووايئ چه دَ يردن اوبه دَ خداوند دَ عهد دَ صندوق په
مخ کښ پرېکړې شوې هرکله چه هغه له يردنَ پورې وت دَ يردن
اوبه پرېکړې شوې او دا کاڼي به دَ بني‌اسرائيلو دَ يادګارئ دَپارَ
وِي تر ابدالآباده پورې
۸ ۸ او بني‌اسرائيلو هسې وکړل لکه چه يشوع و فرمايل او
دَ يردن له مينځ نه ئې دولس کاڼي پورته کړل لکه چه خداوند يشوع
ته کلام وکړ په شمار دَ فرقو دَ بني‌اسرائيلو او له ځان سره ئې

٩ دَ شپي دَ تيرولو ځاي ته پوري كړل او هلته ئې كيښودل ٩ يشوع
دولس كاڼي دَ يردن په مينځ كښ په هغه ځاي باندِ چه دَ
عهد دَ صندوق دَ پورته كوونكيو پښي ولاړي وي ودرول او
هلته تر دي ورځي پوري دِي
١٠ ١٠ او هغو كوهينانو چه صندوق ئې پورته كړي وه دَ يردن
په مينځ كښ ولاړ وُو تر هغه پوري چه هغه ټول كلام پوره
شه چه خداوند يشوع ته فرمايلي وه چه اُمّت ته ئې ووايي
لكه ټول څه چه موسیٰ يشوع ته فرمايلي وه او هغه اُمّت
بيړه وكړه او پوري وتل
١١ ١١ او داسي وشوه چه ټول اُمّت تمام پوري شول نو دَ
خداوند صندوق پوري شه او هغه كوهينان هم دَ اُمّت په
١٢ حضور كښ ١٢ او دَ روبن ځامن او دَ جاد ځامن او نيم قوم
دَ منسّي وصلي تړلي دَ بني‌اسرائيلو په مخ كښ پوري شول لكه
١٣ چه موسیٰ ورته ووېل ١٣ په قدر دَ څلوېښت زرو ملا تړلي دَ
لښكرو دَ خداوند په مخ كښ دَ جنگ دَپاره دَ يريحا و ميدان ته
تير شول
١٤ ١٤ په دغه ورځ خداوند يشوع دَ ټول اسرائيل په ستركو
كښ لوي كړ او ورنه ووېريدل لكه چه له موسیٰ نه دَده دَ
١٥ ټول ژوندون په ورځو كښ وېريدل ١٥ او خداوند يشوع ته په
ويلو ووېل
١٦ ١٦ هغو كوهينانو ته چه دَ شهادت صندوق ئې پورته
كړي دي ووايه چه له يردن دِ وخيژي
١٧ ١٧ او يشوع هغو كوهينانو ته وفرمايل وئې ويل چه
١٨ له يردن وخيژئ ١٨ او داسي وشوه هركله چه دَ خداوند دَ
عهد دَ صندوق پورته كوونكي دَ يردن له مينځ وختل او دَ

کومينانو دَ پښو تلي وچي ته پورته شول نو اوبه دَ يردن خپلو
ځايونو ته پسته راغلي او دَ پخوا په شان په خپلو ټولو غاړو
وه بهيدلي
١٩ ١٩ او دَ اوّلي مياشتي په لسمه ورځ اُمّت له يردنَ وخوت
او په جلجال کښ ډيره شه دَ يريحا دَ نمرخاته په حد کښ
٢٠ ٢٠ او هغه دولس کاڼي چه دوي له يردنَ واخستل يشوع
په جلجال کښ ودرول
٢١ ٢١ او ده بني‌اسرائيلو ته په دي ويلو و ويل هرکله چه
ستاسو ځامن صبا له خپلو پلارونو نه پوښتنه وکړي او وائي
٢٢ چه دا څه کاڼي دِي ٢٢ نو تاسو به خپل ځامن وپوهوئِ چه
اسرائيل په وچه په دي يردن پوري‌ووت
٢٣ ٢٣ ځکه چه خداوند الله ستاسو دَ يردن اوبه ستاسو
دَ وړاندِ وچي کړي تر هغه چه تاسو پوريوتلئِ لکه چه خداوند الله
ستاسو په بحرِ قلزم وکړل هغه چه ده ځمونږ له مخي نه تر هغه
٢۴ چه مونږ تير شولو وچي کړلي ٢۴ تاچه ټول اُمّت دَ زمکي وپوهيږي
چه دَ خداوند لاس قوي دَي تاچه ټولي ورځي ستاسو له
خداوند الله نه ويره وکړِئ *

# پنځم باب

١ ١ او داسي وشوه هرکله چه هغو ټولو بادشاهانو دَ اموريانو
چه په پوري غاړه دَ يردن مغرب ته وُو او ټول بادشاهان دَ
کنعانيانو چه په تعر درياب باندِ وُو واوريدل چه خداوند دَ
بني‌اسرائيل دَ وړاندِ دَ يردن اوبه وچي کړلي څو چه مونږ پوريوتلو
زړونه ئي وِيلي شول او دَ بني‌اسرائيل دَ وړاندِ ساه په‌کښ پاتي
٢ نه شوه ٢ په دا وقت کښ خداوند يشوع ته وويل چه ته
دَ خپل ځان دَپاره دَ بکري دَ کاڼو چړي جوړي کړه وکړه دوبيم

وار دَ بنيِ اسرائيلو ختنه وکړه
۳ ۳ او يشوع دَ خپل ځان دَپارَ دَ بکري دَ کاڼيِ چړي جوړي
کړي او دَ بنيِ اسرائيلو ئي دَ چوشئِ په غره کښ ختنه وکړله
۴ ۴ او يشوع چه ختنه وکړه دَ هغي سبب دا دَي ټول اُمّت
چه له مصر نه ووتل ټول نارينه کسان دَ جنګ په بيابان کښ
مړه شول دَ هغو دَ وتلو په لاري کښ له مصرَ
۵ ۵ ځکه چه هغه ټول اُمّت چه ووت مختون وه او هغه
ټول اُمّت چه په بيابان کښ زيږدلي وه په لار دَ وتلو دَ دوي
له مصر نه ختنه کړي شوي نه وه
۶ ۶ ځکه چه بنيِ اسرائيل څلويښت کاله په بيابان کښ ګرزيدل
تر هغه پوري چه ټول هم هغه جنګيالي سړيِ دَ قوم چه له
مصر نه راووتل تمام شول ځکه چه هغو دَ خداوند قول
وانه وريد له هغوي سره چه خداوند قسم وخوړ چه زه به
هغه زمکه ور ښکاره نه کړم چه خداوند دَ هغو پلارونو سره
قسم وخوړ چه موږ ته به ئي راکړِي هسي زمکه چه شوده او
۷ ګبينه په کښ بهيږيِ ۷ او ده دَ هغو ځامن دَدوي په ځاي ودرول
يشوع هغه ختنه کړل ځکه چه دوي ناختنه وُو ځکه چه په
لاري کښ ئي ختنه کړي نه وُو
۸ ۸ او داسي وشوه چه دَ ټول اُمّت ختنه کول ئي تمام کړل
نو په خپلو ځايونو کښ په ډيره کښ مقام شول تر هغه چه
۹ روغ شول ۹ او خداوند يشوع ته وويل چه نن ورځ مِ له تاسو
نه ملامت دَ مصر وغورزاوه او تر دي ورځي پوري دَ هغي
۱۰ ځاي نوم جلجال وبللي شه ۱۰ او په جلجال کښ بنيِ اسرائيل ډيره
شول او فصح ئي وکړ په څوارلسمي ورځي دَ مياشتيِ دَ ماښام په
وقت په ميدان دَ يريحا کښ

١١ ١١ او له زړي غلي دَ زمکي نه پس له فصح په صبا کښ
پتيري ډوډيِ او نيني هم په هغي ورځي کښ وخوړلي
١٢ ١٢ او په صبا کښ مَنَ تمام شه هرکله چه دوي دَ
زمکي له غلي نه وخوړل او بيا دَ بنياسرائيلو دَپارَ مَن نه وه نو
دوي له حاصله دَ زمکي دَ کنعان په هغه کال کښ وخوړل
١٣ ١٣ او داسي وشوه چه يشوع يريحا څخه وه خپلي سترګي
ئي پورته کړي او و ئي کتل اوګوره چه يو سړي دَده په مخ
کښ ولاړ دي او وکښلي توره ئي په لاس کښ ده او يشوع ورغي
او ورته و ئي ويل ته څمونږ دَپارَ يي يا څمونږ دَ دښمنانو دَپارَ
١٤ ١٤ نو هغه وويل نه مګر زه اوس سردار دَ فوځ دُ
خداوند راغلي يم نو يشوع پړمخ په زمکي پريوت او سجده ئي
وکړه او ورته ئي وويل چه خاوند څما خپل بنده ته څه وايي او
سردار دَ خداوند دَ فوځ يشوع ته وويل له خپلو پښو نه څپليِ
وباسه څکه چه دا مقام چه په کښ ته اوس ولاړيي مقدّس
دَي او يشوع هم هسي وکړل *

# شپږم باب

١ ١ او يريحا دَ بنياسرائيلو له سببَ سخت قلعهٔبند شه نه څوک
ورننه وتل او نه څوک باهر راوتل
٢ ٢ او خداوند يشوع ته وويل ګوره چه ما يريحا او بادشاه
ئي او قوّتناک جبّاران ئي ستا په لاس کښ درکړي دِي
٣ ٣ او تاسو به هغه ښهر ګير کړيِ ټول جنګيالي سړي
به تر شپږو ورځو پوري له ښهره چاپيره يو يو وار ګرزيِ
٤ ٤ او اوه کوهينان له اوو قرناؤ دَ مړونو دَ ښکوونو
سره دَ صندوق دَ وړاندِ به ئي پورته کړي او په اوومه ورځ
تاسو به اووه واره هغه ښهر ګير کړيِ او هغه کوهينان به

۵ قرناوي وغږوي ۵ او داسي به وشي هرکله چه دوي ئي په اوږد
آواز وغږوي او چه تاسو آواز د قرناؤ واورئ نو ټول هغه
اُمّت دِ په لويو نارو سره ناري ووهي او ديوال د ښهر به له
خپل ځاي له بېخه پريوزي او د اُمّت هريو سړي به په وړاند
وخيژي
۶ ۶ او يشوع د نون ځوي کوهينان راوبلل او ورته وئي
ويل چه هغه د عهد صندوق پورته کړئ او اووه کوهينان دِ
اووه قرنا د مړونو د ښکرونو د خداوند د صندوق په مخ کښ
پورته کړي
۷ ۷ او دوي اُمّت ته وويل لاړ شئ او هغه ښهر ګير
کړئ او د خداوند د صندوق په مخ کښ دِ جنګيالي سړي ځي
۸ ۸ او داسي وشول هرکله چه يشوع هغي اُمّت ته وويل
هغه کوهينان پورته کوونکي د اووه قرناؤ د مړونو د ښکرونو
سره د خداوند د وړاندِ تېر شول او په قرناؤ کښ ئي پُو کړل
او د خداوند د عهد صندوق ورپسي ته
۹ ۹ او جنګيالي سړي د وړاندِ د کوهينانو پُو کوونکي په
قرناؤ کښ تلل او په صندوق پسي ورستني خلق تلل او قرنا
ئي غږولي
۱۰ ۱۰ او يشوع هغي اُمّت ته وفرمايل وئي ويل تاسو به
ناري نه وهئ او نه به خپل آواز واؤروئ او نه دِ ستا له خولي
نه خبره ووزي تر هغه ورځي پوري چه زه درته ونه وايم
۱۱ چه ناري وکوئ نو تاسو به ناري وکړئ ۱۱ او د خداوند صندوق
ئي يو وار د ښهر په ګرداګرد وګرزاوه او دوي ډيري ته راغلل
او په ډيري کښ ئي شپه تيره کړله
۱۲ ۱۲ او صبا وختي يشوع پورته شه او هغه کوهينانو صندوق

١٣ دَ خداوند واخست ١٣ او هغه اوه کوهینان پورته کوونکي دَ اوه
قرناؤ دَ مړوونو دَ ښکرونو دَ خداوند دَ صندوق پـه مخ تلل
او قرنا ئې غږولي او جنکیالي دَ دوي په مخ کښې تلل او ورستي دَ
خداوند په صندوق پسي تلل او چه تلل نو قرنا ئې غږولي
١٤ ١٤ او په دویمه ورځ یو وار له هغه ښهره چاپېره وګرزیدل
او بیا ډیري ته پستنه راغلل هم هسي ئې تر شپږو ورځو پوري
وکړل
١٥ ١٥ او په اوومي ورځي داسي وشول چه سحر وقتي پاڅیدل
دَ ښهر په ګرداګرد په هغه شان اوه واره وګرزیدل په هغي
ورځي کښې تش اوه واره دَ هغه ښهر په ګرداګرد وګرزیدل
١٦ ـــ ګیر کړل ١٦ او په اوم وار داسي وشول هرکله چه کوهینانو
قرنا وغږولي نو یشوع اُمّت ته وویل چه ناري کړئ ځکه چه
خداوند دغه ښهر تاسو ته درکړي دئ
١٧ ١٧ نو دا ښهر به حرم شي هغه او ټول څه چه په دي
کښې دي خداوند لره تش راحبه زناکاره به ژوندئ پاتي شي دا
او هغه ټول چه په کور کښې ورسره دي ځکه چه دي هغه استاځي
چه مونږ واستول پټ کړل
١٨ ١٨ او تاسو چه یئ له حرم نه خپل ځان وساتئ هسي
نه چه تاسو حرم کړي شئ او له حرمَ واخلئ او دَ اسرائیلو ډیره
حرمه کړي شي اوخپه ئې کړئ
١٩ ١٩ او ټول سپین او سره زر او ټول لوښي دَ زېړو او دَ
اوسپنو خداوند له مقدّس دي دَ خداوند په خزانې کښې دِ داخل
شي
٢٠ ٢٠ او هغه اُمّت ناره وکړه او قرنا ئې وغږولي او داسي وشوه
چه خلقو دَ قرنا آواز واوریده چه په ډیري لوي ناري سره هغه

اُمّت ناره وكړه او ديوار دَ ښهر په خپل ځاى پرېوت او اُمّت
ښهر ته وخوت هر سړَي په خپل مخ كښ او هغه ښهر يُ
ونيوه
۲۱ ۲۱ او ټول چه په ښهر كښ وُو حرم يُ كړل له سړي نه
تر ښځي او له ځوانه تر سپين ږيري او غوا اوګډ او خره يُ دَ توري
۲۲ له مخي نه (تېر كړل) ۲۲ او يشوع هغي دوو كسو ته چه په هغي
زمكي كښ يُ جاسوسي كړي وه وويل چه دَ هغي زناكاري ښځي
په كور كښ ننه وزيِ او له هلته نه هغه ښځه او هغه ټول
چه ورسره وِي راوباسيِ لكه چه تاسو هغي ته قسم وخوړ
۲۳ ۲۳ او هغه دوه جاسوسان ځوانان ننه وتل او راحبه
او پلار يُ او مور يُ او ورونړه يُ او ټول چه يُ وُو راو
يُ يستل او ټوله خپلخانه يُ را ووتله او دَ اسرائيل له ډيري نه
يُ بهر كښينول
۲۴ ۲۴ او هغه ښهر يُ او هرڅه چه په كښ وُو په اور
يُ وسيزل ننش سپين او سره زر او دَ زيړو اودَ اوسپني
لوښي يُ دَ خداوند دَ كور په خزاني كښ كيښودل
۲۵ ۲۵ ليكن راحبه زناكاره او دَ دي دَ پلار كور او هغه ټول
چه يُ وُو يشوع ژوندي پرېښودل او دا دَ بنياسرائيلو په مينځ
كښ تر ننِ ورځي پوري اوسيدله ځكه چه دي هغه دوه استاځي
چه يشوع دَ يريحا دَ جاسوسيِ دَپاره واستول پټ كړل
۲۶ ۲۶ او يشوع په هغه وقت يو قسم وخوړ و يُ ويل ملعون
دِ وِي هغه سړيُ دَ خداوند په مخ كښ چه ودروِي او بنا
كړِي دا ښهر دَ يريحا په مشر به يُ آباد كړِي او په كشر به يُ
۲۷ دروازي ودروي ۲۷ او خداوند له يشوع سره وه او شهرت يُ په
ټولي زمكي كښ وه ❊

# اووم باب

۱ آ او بني اسرائیلو په حرم باندِ خیانت وکړ او عاکان دَ کرمي
خوي دَ زبدِي خوي دَ زارح خوي دَ یهودا له فرقي نه له حرمَ
واخستل او دَ خداوند غضب په بني اسرائیلو باندِ گرم شه
۲ ۲ او یشوع له یریحا نه سړِي واستول هغه عَيَ ته چه
بیتِ آوَن څخه دَي په نمرخاته دَ بیتِ ایل دَي او ورته و ئي ویل
پاس وخیژئِ او دَ هغي زمکي جاسوسِي وکړئِ او هغه سړِي پاس
وختل او دَ عَيَ جاسوسِي ئي وکړه
۳ ۳ او یشوع ته پستنه راغلل او ورته و ئي ویل چه ټول
اُمّت دِ نه خیژي بلکه په قدر دَ دوو یا دَ دریو زرو سړو دِ
وخیژي او عَيَ دِ ووهي هلته ټول اُمّت مه ستړي کوه څکه چه
هغوي لږ دِي
۴ ۴ او له اُمّت نه هغه ځاي ته قریب دري زره سړِي وختل
او هغوي دَ عَيَ دَ خلقو له مخي نه وتښتیدل
۵ ۵ او دَ عَيَ سړیو قریب شپږ دیرش سړِي ووهل او دَ دروازي
له مخي نه تر شیبریمَ پوري ورپسي شول او په کوزیدلو کښ ئي
ووهل او دَ اُمّت زړه وِیلي او دَ اوبه په شان شه
۶ ۶ او یشوع خپلي جامي وشلولي او تر نمابنامَ پوري دَ
خداوند دَ صندوق په مخ کښ پړمخي په زمکه پریوت هغه او
سپین ږیري دَ اسرائیل او په خپلو سرونو ئي خاوري اچولي
۷ ۷ او یشوع وویل هَئِ هَئِ اي خاوندَ یهوه تا دا اُمّت له
یردن نه ولي پوري کړ چه ته سو دَ اُموریانو په لاس ورکړي چه
هلاک شُو کاشکي چه مونږه راضِي وَي او دَ یردن په پوري
غاړه اوسیدلَي

۸ ۸ آه خما خاوندَ څه به وايمِ پس له دي چه اسرائيل
دَ خپلو دُښمنانو له مخي نه شاگرزولي دِي
۹ ۹ او کنعانيان او ټول اوسيدونکي دَ زمکي به واوري او
په مونږه به چاپيره شِي او خمونږ نُوم به له زمکي نه غوڅ کړي
او ته به دَ خپل لوي نُوم دَپارَ څه وکړي
۱۰ ۱۰ اوخداوند يشوع ته ووئيل پاڅه څله ته په خپل مخ
۱۱ پروت يي ۱۱ اسرائيل خطا کړي ده او خما له وعدي نه چه ما ورته
فرمايلي ده تير شوي دِي او هم له هغه حرمه ئي آخستلِي دِي او
غلا ئي هم وکړه او انکار ئي هم کړي دَي او په خپل مال کښ
ئي ايښي دَي
۱۲ ۱۲ او بنِي اسرائيل نه توانيدل چه دَ خپلو دُښمنانو دَ وړاندِ
ودريږي دَ خپلو دُښمنانو له مخي شاگرزوي څکه چه دوي حرم
کړي شوِي دِي او زه به بيا له تاسو سره نه شم که چري هغه
حرام له خپل مينځ نه نيست نه کړئِ
۱۳ ۱۳ پاڅه هغه اُمّت پاک کړه او ورته ووايه چه تر صبا
پوري خپل ځانونه پاک کړئِ څکه چه خداوند دَ اسرائيل الله
داسي وائِي اي اسرائيلَ ستاسو په مينځ کښ حرم څيز دي نو
تاسو نه توانيږئِ چه دَ خپلو دُښمنانو په مخ کښ ودريږئِ تر
هغه پوري چه هغه حرم شَي له خپل مينځ نه نيست نه کړئِ
۱۴ ۱۴ او صبا به دَ خپلو فرقو سره نژدي کړي شئِ او هسي
به وشِي چه هغه فرقه چه خداوند ئي ونيسِي له خيلخانو سره به
نژدي شِي او هغه خيلخانه چه خداوند به ئي ونيسِي له کورونو
سره به نژدي شِي او هغه کور چه خداوند به ئي ونيسِي هر
۱۵ سړي به نژدي شِي ۱۵ او هسي به وشِي چه هغه چه په حرم
سره ونيولې شِي په اور کښ به وسيزلې شِي هغه او ټول

چه دَده دِي څکه چه دَ خداوند وعده ئې ماته کړه او په اسرائيل
کښې ئې احمقي کړې ده
۱۶ ۱۶ او يشوع په صبا وقتي پورته شه او اسرائيل ئې په فرقو
سره رانژدې کړ او دَ يهودا فرقه ونيولې شوه
۱۷ ۱۷ او دَ يهودا خيلخانه ئې را نژدې کړه او دَ زارح خيلخانه
ونيولې شوه او دَ زارح خيلخانې ئې سړي په سړي رانژدې کړه او
زبدِي ونيولې شه
۱۸ ۱۸ او دَ هغه کورئې سړي په سړي رانژدې کړ نو عاکن د
کرمي ځوي دَ زبدِي ځوي دَ زارح ځوی دَ يهودا له فرقې نه ونيولې
۱۹ شه ۱۹ او يشوع عاکن ته ووېل اي ځما ځويه دَ اسرائيل دَ خداوند
الله تمجيد وکړه او اقرار ئې وکړه او ما خبر کړه څه دِ کړي دِي له
ما نه ئې مه پټوه
۲۰ ۲۰ او عاکن يشوع ته ځواب ورکړ او و ئې وېل په رښتيا سره
ما دَ خداوند الله دَ اسرائيل خطا کړې ده او داسې او داسې مِ کړي
دِي
۲۱ ۲۱ او چه ما دَ لوټ په مېنځ کښې يو ښه شنعارِي څادر
وليد او دوه مثقاله دَ سپينو زرو او ژبه د سرو زرو چه وزن
ئې پنځوس مثقالَ وه نو ما ئې آرزو وکړه او وا مِ خستل او کوره
هغه دَ کيږدئِ په مېنځ په زمکه کښې ښخ کړي شوِي او هغه سپين
زر تړِ دَ لاندِ دِي
۲۲ ۲۲ او يشوع استاځي واستول او هغوي کيږدئِ ته ورغليدل
او کوره په کيږدِي کښې ښخ کړِي شوِي دِي او هغه سپين زر تړِ
دَ لاندِ
۲۳ ۲۳ او دَ کيږدئِ له مېنځ ئې واخستل او يشوع ته ئې او ټول
بني اسرائيل ته ئې راوړل او دَ خداوند په مخ کښې ئې کښېښودل

۲۴ ۲۴ نو یشوع عاکن دَ زارح ځوي او هغه سپین زر او هغه
څادر او هغه ژبه دَ سرو زرو او دَ هغه ځامن او دَ هغه لونړه
او دَ هغه غوا او خره ئي او ګډي ئي او کیږدي ئي او هغه ټول
چه ئي لرل واخستل او ټول اسرائیل ورسره او دَ عاکور ترخوړه
پوري ئي وخیژول
۲۵ ۲۵ او یشوع وویل ولي دِ په مونږ بلا پریستله خداوند به
نن ورځ په تا بلا پریباسي او ټولو اسرائیلو په کاڼو سنګسار کړ
۲۶ او په اور ئي وسیزل او په کاڼو ئي وویشتل ۲۶ او په هغه ئي لوي
څلي دَ کاڼو ودراوه چه تر دي ورځي پوري دَي او خداوند دَ خپل
غضب له ګرمئ نه وګرزید له دي سببَ تر نن ورځي پوري دَ هغه
مکان نوم دَ عاکور خوړ بللي شي ٭

# اتم باب

۱ ۱ او خداوند یشوع ته وویل مه ویریږه او مه حیرانیږه ټول جنګیالي
سړي ځان سره واخله او پورته شه عَيْ ته وخیژه وګوره ما ستا
په لاس کښ دَ عَيْ بادشاه او دَده خلق او دَده ښهر او دَده
زمکه درکړي دِي
۲ ۲ او ته به په عَيْ او دَده په بادشاه هسي وکړي لکه چه
په یریحا او دَده په بادشاه دِ کړي دِي بي له دي چه دَ هغه لوټ
او دَده مویشي به دَ خپلو ځانونو دَپارَ شوکوئِ دَ ښهر دَپارَ دَده
دَ ورستو یوه پسوني جوړه کړه
۳ ۳ نو یشوع او ټول جنګیالي سړي پورته شول چه په عَيْ
باندِ وخیژي او یشوع دیرش زره سړي جبّاران دَ قوّت چونړ کړل
او دَ شپي ئي واستول
۴ ۴ او ورته ئي وفرمایل وئي ویل ګورئ تاسو به ښهر ته دَ
ښهر له ورستو پسوني وکړئ له ښهر نه ډیر مه لري کیږئ

۵ ۵ ليکن تاسو لټول تيار شئ او زه لټول اُمّت چه له ما سره وي
ښهر ته به ورنژدي شو او هسي به وشي هرکله چه دوي مونږ
ته راووزي لکه چه په شروع کښ وُو مونږ به دَدوي له مخونو نه
۶ تښتُو ۶ او هغوي به راپسي راووزي تر هغه پوري چه مونږ دوي
له ښهرَ راوکښلي وي ځکه چه هغه به وائي څمونږ له مخونو نه
تښتي لکه چه په وړاندِ او مونږ به دَ هغو له مخونو نه وتښتُو
۷ ۷ او تاسو به له پسوني نه پورته شئ او هغه ښهر به په ميراث
واخلئ او خداوند ستاسو الله به ئي ستاسو په لاس درکړي
۸ ۸ او داسي به وشي هرکله چه تاسو هغه ښهر ونيسئ نو
په هغه ښهر به اور پوري کړئ دَخداوند دَ کلام په موافق به
وکړئ ګورئ ما تاسو ته فرمايلي دي
۹ ۹ او يشوع دوي واستول او پسوني ته راغلل او دَ بيت‌ايل
اودَعَي په مينځ کښ دَعَي مغرب طرف ته مقام شول او يشوع هغه
۱۰ شپه دَ اُمت په مينځ کښ تيـــره کړه ۱۰ او په صبا يشوع سحر
وختي پورته شه او اُمّت ئي شمار کړ او هغه او سپين ږيري دَ
۱۱ اسرائيل دَ اُمّت په مخ کښ عَيُ ته وختل ۱۱ او هغه جنګيالي سړي
ورسره وختل او ورنژدي شول او دَ ښهر په برابر راغلل او د
عَيُ په قطب طرف ديره شول او دَده او دَعَي په مينځ کښ خوړه وه
۱۲ ۱۲ او قريب پنځه زره سړي ئي واخستل او دَ بيت‌ايل او دَ
عَي په مينځ کښ دَ ښهر مغرب طرف‌ته په پسوني کښ ئي کښينبودل
۱۳ ۱۳ نو دوي هغه اُمّت کيښبود هغه لټول لښکر چه دَ ښهر
قطب طرف‌ته وه اودَ ښهر په مغرب طرف هغه پسوني او يشوع
په هغي شپي کښ دَ هغي خوړ په مينځ کښ شپه تيره کړله
۱۴ ۱۴ او هسي وشوه هرکله چه دَعَي بادشاه دا وليد نو هغوي
بيړه وکړه او سحر وختي پورته شول نودَ ښهر سړي دَ جنګ دَپارَ

دَ اسرائيل په خلاف ووتل دي او ټول خلق دَده په مقرر وقت کښ
دَ عرابي په مخ کښ او هغه پوه نه شه چه ورته دَ ښهر دَ ورستو
پسوني وَه
١٥ ١٥ او يشوع او ټول اسرائيل دَدوي له وړاندِ نه دَ شکست
بانه وکړه او دَ بيابان په لاري وتښتيدل
١٦ ١٦ او په ټولو خلقو دَ ښهر ناره وشوه چه په دوي پسي
وزغليږ نو هغوي په يشوع پسي وزغليدل او له ښهر نه وکښلي شول
١٧ ١٧ او په عَيْ او په بيت‌ايل کښ يو سړي پاتي نه شه چه په
اسرائيل پسي و نه وت او هغو ښهر پرانتي پريښود او په اسرائيل
١٨ پسي وزغليدل ١٨ او خداوند يشوع ته وويل هغه شلګي چه ستا په
لاس کښ دَي دَعَيْ په لوري ئي اوږد کړه څکه چه زه به هغه ستا
په لاس کښ درکړم او يشوع هغه شلګي چه دَده په لاس وه دَ
١٩ ښهر په طرف ئي اوږد کړ ١٩ نو هغه پسوني له خپل مکانَ په بيړي
پورته شوله او هرکله چه ده خپل لاس اوږد کړ هغوي وزغليدل
او په ښهر کښ ننه‌وتل او و ئي نيوه او بيړه ئي وکړه او په ښهر
ئي اور پوري کړ
٢٠ ٢٠ او چه دَعَيْ خلقو په ورستو وکتل نو و ئي ليد او ګوره
چه دَ ښهر لوګي آسمان ته خوت او نه توانيدل چه دي خوا يا هغي
خوا ته وتښتي او هغه خلق چه بيابان ته تښتيدل په خپلو زغلونکيو
باندِ را وجاروتل
٢١ ٢١ او هرکله چه يشوع او ټول اسرائيلو وليدل چه دَ
پسوني خلقو هغه ښهر واخست او چه دَ ښهر لوګي پورته شه
نو وجاروتل او دَ عَيْ خلق ئي ووهل
٢٢ ٢٢ او دوي له ښهر نه دَ هغوي په خلاف ووتل او دَ
اسرائيل په مينځ کښ وَوُ څه له هغو نه دي خوا او څه هغه خوا

او دوي ئي وهل ځو چه هيڅوک ور نه پاتې نه شه او خلاص
نه شه
۲۳ ۲۳ او دَ عَيْ بادشاه ئي ژوندي ونيوه او يشوع ته ئي وروست
۲۴ ۲۴ او هسي وشوه هركله چه اسرائيل په پټي كښ قتلول ټول
اوسيدونكي دَ عَيْ ئي تمام كړل په هغه بيابان كښ چه په كښ
وريسي شول او هغوي ټول دَ تورې په ځ پريوتلي وُو ځو چه
تمام شول نو ټول اسرائيل عَيْ ته وجاروتل او دَ تورې په ځ
۲۵ ئي ووهل ۲۵ او ټول چه په هغي ورځي پريوتلي وُو له سړو نه
او له ښځو نه دولس زره وُو ټول خلق دَ عَيْ
۲۶ ۲۶ ځكه چه يشوع خپل لاس چه پخپل شلګي اوږد كړ
و ئي نه كرزاوه تر هغه پوري چه ئي ټول اوسيدونكي دَ عَيْ
۲۷ حرم نه كړل ۲۷ تش سويشي او لوټ دَ هغي ښهر اسرائيل دَ
خپلو ځانونو دَپارَ لوټ كړل په موافق دَ خداوند دَ كلام چه
۲۸ يشوع ته ئي فرمايلي وه ۲۸ او يشوع عَيْ وسيزه او تر ابدالآبادَ
پوري ئي ديران كړ يوه لويه خرابه تر دي ورځي پوري
۲۹ ۲۹ او دَ عَيْ بادشاه ئي په يوي ونې باندِ تر نمابنامَ پوري
ځوړند كړ او دَ نمر پريوته په وقت يشوع وفرمايل او دَ هغه
لاش ئي له ونې نه راكوز كړ او دَ ښهر دَ دروازي دَ ننه وتلو په
ځاي ئي وغورزاوه او په ده باندِ ئي دَ كاڼو لويه ډيرئِ ودروله
تر دي ورځي پوري
۳۰ ۳۰ نو يشوع دَ عيبال په غره كښ يو مذبح دَ اسرائيل دَ
دَ خداوند الله دَپارَ بنا كړله
۳۱ ۳۱ لكه چه موسىٰ دَ خداوند بنده بني‌اسرائيل ته وفرمايل
لكه چه دَ موسىٰ دَ تورات په صحيفي كښ ليكلي شوي وُو يوه مذبح
دَ ثابتو كاڼو چهورباندِ هيڅ سړي اوسپنه نه پورته كوله په

هغه ئي خداوند لره سيځونکي قربانئِ پورته کړلي او دَ سلامتي
ذبحي ئي ذبح کړلي
۳۲ ۳۲ او هلته ئي په کاڼو باندِ يوه نسخه دَ هغه تورٰت چه
موسيٰ ليکلي وه دَ بنيِ اسرائيل په مخ کښ ئي وليکله
۳۳ ۳۳ او ټول اسرائيل او سپين ږيري ئي او بزرګان ئي او
قاضيان دَ صندوق په څنګ په دي خوا په هغي خوا ودريدل دَ
ليوييانو دَ کوهينانو په مخامخ چه پورته کونکي دَ خداوند دَ عهد
دَ صندوق وُو بيګانه لکه وطني نيم دَ هغو دَ جزيريم دَ غرهِ په
مخامخ او نيم دَ هغو دَ عيبال دَ غره په مخامخ لکه چه موسيٰ دَ
خداوند بنده اول دَ اسرائيل دَ اُمّت دَ برکت ورکولو دَپارَ
فرمايلي وُو
۳۴ ۳۴ او پس له دي ئي هغه ټول کلام دَ تورٰت ولوست
هغه برکت او لعنت موافق د هغو ټولو چه دَ تورٰت په صحيفي
کښ ليکلي شوي دِي
۳۵ ۳۵ يو کلام نه وه له هغو ټولو نه چه موسيٰ وفرمايه چه
يشوع دَ ټول اسرائيل دَ جماعت دَ وړاندِ او دَ ښځو او دَ طفلانو
او دَ هغه بيګانه وو چه دوي سرهِ تلل و نه لوست ❊

# نهم باب

۱ ۱ او داسي وشوه هرکله چه ټولو بادشاهانو چه په پوري غاړه
دَ يردن او په غره او په کوز ميدان او دَ لوي قهرِ درياب په غاړه
په مقابل دَ لُبنان حتيانو او اموريانو او کنعانيانو او پريزيانو
او حيويانو او يبوسيّانو واوريدل
۲ ۲ نو دوي سرهِ راجمعَ شول دَپارَ دَ جنګ کولو په يشوع
۳ او په اسرائيل په يو آواز سره ۳ او چه اوسيدونکيو دَ جبعون
واوريدل هغه څه چه يشوع په يريحاو په عَيَ کړي وه نو دوي

۴ مکر وکړ او راغله ۴ او لاړل او جوړه ئي وکړه او په خپلو خرو
باندِ ئي ښځي واخستي او دَ شرابو زاړه او شليدلي او ترلي شوي
مشکونه
۵ ۵ او شليدلي پيوند شوي پنړي دَ هغو په پښو وي او زړي
جامي په دوي باندِ وي او دَ توښي ټولي ډوډئِ ئي وچي او چنړاسني
۶ وي ۶ او په جلجال کښں دَ يشوع ديري ته ورغلل او ده ته او دَ
اسرائيل سړو ته ئي وويل چه مونږ له لري زمکي نه راغلي يُو او
اوس تاسو له مونږ سره عهد وتړئِ
۷ ۷ او دَ اسرائيل سړيو هغو حاويانو ته وويل بنائي چه تاسو
ځمونږ په مينځ کښں اوسئِ نو څرنګ به له تاسو سره عهد وتړو
۸ ۸ او هغوي يشوع ته وويل مونږ ستا بندګان يُو او يشوع ورته
وويل تاسو څوک يئِ او له کومه راغلي يئِ
۹ ۹ او هغوي ورته وويل چه ستاسو بندګان له ډيري لري
زمکي نه راغلِي دِي دَ خداوند ستاسو دَ الله دَ نوم په سبب ځکه
چه دَ هغه شهرت مو آوريدلي دي او هغه ټول چه په مصر
۱۰ کښں ئي وکړل ۱۰ او هغه ټول چه دَ اموريانو له دوو بادشاهانو سره
ئي وکړل چه دَ يردنَ په پوري غاړه وُو دَ حشبون دَ بادشاه سيحون
سره او دَ باشان دَ بادشاه دَ عوج سره چه په عشطاروت کښں وه
۱۱ ۱۱ او ځمونږ سپين ږيريو او ټولو اوسيدونکيو ځمونږ دَ زمکي
مونږ ته خبري وکړي و ئي ويل چه تاسو په لاسونو کښں دَ لاري
توښه واخلئِ او مخامخ کيدلو ته ئي ورشئِ او ور ته ووايئِ چه مونږ
۱۲ ستاسو بندګان يُو او اوس له مونږ سره عهد وتړئِ ۱۲ دا ځمونږ
ډوډئِ توده وه چه مونږ له خپلو کورونو نه دَ توښي دَپارَ را
واخسته په هغه ورځ چه مونږ راووتلُو تاچه تاسي ته درشُو
او اوس ګوره چه وچه او چنړاسنه شوله

۱۳ ۱۳ او دا نښکوند دَ شرابو چه مونږ ډک کړل نوي وُو او
ګوره چه شليدلي دِي او دا څمونږ جامي او پڼړي زړي شوي په
سبب دَ ډېري اوږدي لاري
۱۴ ۱۴ او هغو سړو دَ هغوي له توښي نه واخستل او دَ خداوند
له خولي نه يُ پوښتنه و نه کړه
۱۵ ۱۵ او يشوع دوي سره صلحه وکړه او ورسره يُ عهد وتاړه
دَ هغو دَ ژوندو پرېښودلو دَپارَ او دَ جماعت رئيسانو هغوي
ته قسم وخوړ
۱۶ ۱۶ او داسي وشوه چه دَ دريو ورځو په آخر کښ پس له
هغه چه ورسره يُ عهد وتاړه وائي وريدل چه هغوي سونږ ته
نژدي دِي او چه دوي څمونږ په مينځ کښ اوسي
۱۷ ۱۷ او بني‌اسرائيلو کوچ وکړ او په دريمه ورځ دَ هغو په
ښهرونو باندِ ورغلل او دَ هغوي ښهرونه جبعون او کفيره او بيروت
۱۸ او قريت‌يعريم وُو ۱۸ او بني‌اسرائيل هغوي و نه وهل ځکه چه دَ
جماعت رئيسانو ورسره دَ اسرائيل په خداوند الله قسم خوړلي وه
۱۹ او ټول جماعت په رئيسانو دړکه وکړه ۱۹ او ټولو رئيسانو ټول جماعت
ته وويل چه مونږ دوي سره په خداوند الله دَ اسرائيل قسم خوړلي
دَي او اوس نه توانېږُو چه په دوي لاس ولګوُو
۲۰ ۲۰ دا به ورسره وکړُو او ژوندي به يُ پرېږدُو او غضب به
په مونږ باندِ و نه شي دَ هغه قسم په سبب چه مونږ ورسره
۲۱ خوړلي دَي ۲۱ او رئيسانو ورته وويل ژوندي دِ وِي نو هغوي پريکونکي
دَ لرګو او يستونکي دَ اوبو دَ ټول جماعت دَپارَ شول لکه چه
رئيسانو ورسره ويلي وُو
۲۲ ۲۲ او يشوع دوي راوبلل او ورسره يُ خبره وکړه و يُ ويل
ولي مونږ تکلي يُو ويل مو چه مونږ له تاسو نه ډېر لرې يُو او تاسو

خمونږ په مينځ کښې اوسيدونکي يئ

۲۳ ۲۳ او اوس تاسو ملعونان يئ او نه به له تاسو نه غلامان
پريکړي شي هم پريکونکي دَ لرګو هم يستونکي دَ اوبو ځما دَ الله دَ
کور دَپارَ

۲۴ ۲۴ او يشوع ته ئي ځواب ورکړ او وئي ويل چه مونږ ستا بندګان
ته ښه خبر شوي يو په دي چه څرنګ خداوند ستاسو الله موسیٰ
خپل بنده ته وفرمائل چه تاسو ته به هغه ټوله زمکه درکړي او
چه هغه ټول اوسيدونکي دَ زمکي به ستاسي له مخي نه نيست
کړي او مونږ ستاسو له مخونو نه دَ خپلو ځانونو دَپارَ ډير وويريدلو
او دا کار مو کړي دَي

۲۵ ۲۵ او اوس کوره مونږ ستا په لاس کښې يو له مونږ سره
هسي وکړه لکه چه دَ هغه کول ستا په ستړګو کښې ښه او حق وي

۲۶ ۲۶ او داسي ئي ورسره وکړل او دَ بني‌اسرائيل له لاسَ ئي خلاص
کړل او برباد ئي نه کړل

۲۷ ۲۷ او په هغه ورځ يشوع هغوي پرنکونکي دَ لرګو او يستونکي
دَ اوبو دَ جماعت دَپارَ او دَ خداوند دَ مذبح دَپارَ تر دي ورځي
جوړ کړل په هر هغه ځاي کښې چه دي ئي غوره کړي *

# لسم باب

۱ ۱ او داسي وشوه هرکله چه ادوني‌صدق بادشاه دَ اورشليم واوريدل
چه يشوع عَيْ ونيوه اوحرم ئي کړ لکه چه په يريحا او دَ هغه په
بادشاه ئي وکړل هم هسي ئي په عَيْ او دَ هغه په بادشاه وکړل او
چه اوسيدونکيو دَ جبعون څرنګ له اسرائيل سره صلحه وکړه او دَ
هغوي په مينځ کښې دِي

۲ ۲ نو دوي ډير وويريدل ځکه چه جبعون لوي ښهر وه لکه يو
له ښهرونو دَ بادشاهيْ نه او له عَيْ نه لوي وه او ټول خلق ئي

جبّاران ؤو
۳ ۳ او ادونی صدق دَ اورشلیم بادشاه او هوهام بادشاه
دَ حبرون او پیرام بادشاه دَ یرموت او یافیع بادشاه دَ لاکیش
او دبیر بادشاه دَ عجلون ته ئي واستول او وئي ویل
۴ ۴ ما ته راوخیژئ او مدد راکړئ او مونږ به جبعون
ووهو ځکه چه دَ یشوع او دَ بني‌اسرائیل سره ئي صلحه وکړه
۵ ۵ او پنځه بادشاهان دَ اموریانو بادشاه دَ اورشلیم بادشاه
دَ حبرون بادشاه دَ یرموت بادشاه دَ لاکیش دَ عجلون سره جمع
شول او وختل او ټول نوځونه ئي او په جبعون ئي خیمي ودرولي
او هغوي ورسره وجنګیدل
۶ ۶ او دَ جبعون خلقو یشوع ته دَ جلجال ودیري ته واستوه
وئي ویل چه ته له خپلو بندګانو نه خپل لاسونه مه سستوه
په تلوار سره راوخیژه او خلاص موکړه او مدد راکړه ځکه
چه په مونږ باندِ ټول بادشاهان دَ اموریانو چه په کوهستان
کښ اوسي جمع شول
۷ ۷ او یشوع له جلجاله وخوت دي او ټول جنګیالي اُمّت او
ټول جبّاران دَ قوت ورسره
۸ ۸ او خداوند یشوع ته وویل چه له دوي نه مه ویریږه
ځکه چه ستا په لاسونو کښ مِ درکړي دِي یو سړي له هغو
نه ستا په مخ کښ به و نه دریږي
۹ ۹ او یشوع په هغو باندِ ناڅاپه راغي ټوله شپه له جلجاله
۱۰ ورخوت ۱۰ او خداوند دَ اسرائیل له مخي نه هغوي مات کړل او په
لوي وهني سره ئي ووهل په جبعون کښ او دَ بیت‌حوران دَ
ختلو په لاري کښ ئي دوي وزغلول او تر عزیقي او تر مقیدي
پوري ئي ووهل

۱۱ اا او داسي وشول چه دوي دَ اسرائيل له مخې نه تښتيدل
او دوي دَ بيتِ حوران په خوړ کښ وُو نو خداوند له آسمان نه په
لويو کاڼو وويستل ترعزيقي پوري او دوي مړه شول او هغوي
چه دَ بڼلي په کاڼو مړ شول له هغوي نه چه بني اسرائيلو په
توري مړ کړل ډير وُو
۱۲ ۱۲ نو يشوع خداوند ته وويل په هغه ورځ چه خداوند
اموريان وسپارل دَ بني اسرائيل دَ وړاندِ او و ئي ويل دَ ټولو
اسرائيلو دَ سترګو دَ وړاندِ
اي نمرَ ته ودريږه په جبعون
او اي سپوږمۍ ته په خوړ کښ دَ ايلون
۱۳ ۱۳ او نمر قايم شه او سپوږمۍ ودريدله تر هغه پوري چه قوم
له دُښمنانو خپلو نه بدله واخستله دا دَ ياشر په کتاب کښ ليکلې
نه دي څه ؟ او هغه نمر دَ آسمان په مينځ کښ ودريده او په
ډوبيدلو ئي بيړه و نه کړه چه ورځ تمامه شوه
۱۴ ۱۴ او دَ دغي ورځي په شان نه وړاندِ وه نه وروستو چه په کښ
خداوند دَ سړي قول واوريده ځکه چه خداوند دَ اسرائيل دَپارَ
۱۵ جنګ کاوه ۱۵ او يشوع او ټول اسرائيل چه ورسره وه دَ جلجال و
۱۶ ديري ته وجاروتل ۱۶ او هغه پنځه بادشاهان وتښتيدل او دَ
مقيدي په غار کښ ئي ځانونه پټ کړل
۱۷ ۱۷ او يشوع ته خبر وشه په دي ويلو چه هغه پنځه بادشاهان
۱۸ موندلي شوي دي دَ مقيدي په غار کښ پټ شوي دي ۱۸ او يشوع
و ويل چه دَ غار خولي ته لوي کاڼي ورورغړوئ او په هغه باندِ سړي
متقرر کړئ چه و ئي ساتي
۱۹ ۱۹ ليکن تاسو مه ودريږئ او خپلو دُښمنانو پسې زغلئ او
وروستي ئي و وهئ مه ئي پرېږدئ چه په خپل ښهر کښ ننه وزي

ځکه چه خداوند ستاسو الله ستاسو په لاسونو کښې درکړي دي
۲۰ ۲۰ او داسي وشوه چه یشوع او بني‌اسرائیل دَ هغو وهل په ډیري
لوي وهني سره تمام کړل څوچه نیست شول او هغه باقي چه
ورنه پاتي شول په قلعه دارو ښهرونو کښې ننه وتل
۲۱ ۲۱ او ټول اُمّت دیري ته په مقیدی کښې په سلامتیا سره
یشوع ته پستنه راغي هیڅ یو سړي خپله ژبه بني‌اسرائیل ته نه خوځوله
۲۲ ۲۲ او یشوع ووېل دَ غار خوله پرانزئ او له غار نه هم هغه
پنځه بادشاهان ماته راوباسئ
۲۳ ۲۳ او هسي ئي وکړل او له غار نه ئي هم هغه پنځه بادشاهان
ورته راویستل بادشاه دَ اورشلیم بادشاه دَ حبرون بادشاه دَ
یرموت بادشاه دَ لاکیش بادشاه دَ عجلون
۲۴ ۲۴ او هسي وشوه هرکله چه دوي هغه بادشاهان یشوع ته
راویستل نو یشوع ټول سړي دَ اسرائیل راوبلل او دَ جنګیالي
سړیو سردارانو ته چه ورسره تلل ووېل نژدي راشئ خپلي پښي
دَدي بادشاهانو په سرو باندِ کیږدئ او هغه نژدي شول او خپلي
پښي ئي دَ هغو په مرو باندِ کیښودي
۲۵ ۲۵ او یشوع ورته ووېل مه ویریږئ او مه حیرانیږئ تکړه
شئ او دلیر شئ ځکه چه هم داسي خداوند ستاسو به له ټولو
دُښمنانو سره وکړي چه له هغوي سره تاسو جنګ کوئ
۲۶ ۲۶ او پس له هغه ئي دوي ووهل او مړه ئي کړل او په
پنځو ونو باندِ ئي ځوړند کړل او دوي په ونو باندِ تر ماښامَ پوري
زوړند وُو
۲۷ ۲۷ او داسي وشوه دَ نمر پرېوتو په وقت یشوع و فرمایل او
دوي ئي له هغو ونو نه راکوز کړل او په هغي غار کښې چه په کښې
ئي خپل ځانونه پټ کړي وُو ور و ئي غورزول او دَ غار په خولي

ئې لوي كانړي كېښودل تر نن ورځې پورې
۲۸ ۲۸ او په هغه ورځ يشوع مقيده ونيوه او دَ تورې په مخ
ئې ووهله او دَ هغه بادشاه ئې نيست كړ او ټول ځانونه چه
په كښې وو هيڅ يو ئې هم په كښې باقي پرې نه ښوده او دَ مقيدې
په بادشاه ئې داسې وكړل لكه چه دَ يريحا په بادشاه ئې كړي وُو
۲۹ ۲۹ او يشوع او ټول اسرائيل ورسره له مقيدې نه تر لبناه
پورې تير شول او په لبناه ئې جنګ كاوه
۳۰ ۳۰ خداوند هغه هم او دَ هغه بادشاه ئې دَ اسرائيل
په لاس كښې وركړ او دَ تورې په مخ ئې وواهه او ټول ځانونه چه
په كښې وُو هيڅ يو ئې هم په كښې باقي پرې نه ښود او دَ هغه په
بادشاه ئې هسې وكړ لكه چه دَ يريحا په بادشاه ئې كړي وُو
۳۱ ۳۱ او يشوع او ټول اسرائيل ورسره له لبناه تر لاكيس
پورې تير شول او په ده ئې خيمې ودرولې او ورسره وجنګيدل
۳۲ ۳۲ او خداوند لاكيس دَ اسرائيل په لاس كښې وركړ
او په دويمه ورځې ئې واخست او دَ تورې په مخ ئې وواهه او ټول
ځانونه چه په كښې وُو لكه ټول چه له لبناه سره ئې وكړل
۳۳ ۳۳ نو حورام دَ جزر بادشاه دَ لاكيس دَ مدد دَ پاره
وخوت او يشوع هغه او دَ دغه قوم وواهه تر هغه پورې چه
ورته يو هم باقي پاتې نه شه
۳۴ ۳۴ او يشوع او ټول اسرائيل ورسره له لاكيس تر عجلون
پورې تير شول او په هغه ئې خيمې ودرولې او ورسره وجنګيدل
۳۵ او په هغه ورځ ئې ونيوه او دَ تورې په مخ ئې وواهه او ټول
ځانونه چه په كښې وُو او په هغه ورځ ئې حرم كړل لكه ټول
څه چه له لاكيس سره ئې وكړل
۳۶ ۳۶ او يشوع او ټول اسرائيل ورسره له عجلون تر حبرون

پوري وختل او په ده باندِ وجنګيدل
۳۷ ۳۷ او و ئي نيوه او دَ توري په مخ ئي وواهه او دَ هغه
بادشاه او دَ هغه ټول ښهرونه او هغه ټول ځانونه چه په کښ
وُو هيڅ يو ئي په کښ باقي پري نه ښود لکه څنګه چه له عجلون سره
ئي وکړ ليکن هغه ئي حرم کړ او ټول ځانونه چه په کښ وُو
۳۸ ۳۸ او يشوع او ټول اسرائيل ورسره دَبير ته وجاروتل
او ورسره وجنګيدل
۳۹ ۳۹ او هغه ئي ونيوه او دَ هغه بادشاه او دَ هغه
ټول ښهرونه ئي دَ توري په مخ ووهل او ټول ځانونه چه په کښ
وُو حرم ئي کړل هيڅ يو ئي په کښ باقي پري نه ښود لکه چه له حبرون
سره ئي وکړ هسي ئي په دَبير وکړل او دَده په بادشاه او لکه چه
په لِبناه او دَده په بادشاه ئي وکړل
۴۰ ۴۰ او يشوع ټوله زمکه ووهله کوهستان او جنوب او ميدان
او دامن او دَ هغه ټول بادشاهان هيڅ يو ئي په کښ باقي پري
نه ښود. او ټول چه ساه آخلي حرم ئي کړل لکه چه خداوند دَ
اسرائيل الله وفرمايل
۴۱ ۴۱ او يشوع له قادِيش برنيعا تر غزه پوري ووهل او ټوله
زمکه دَ ګوشن تر جبعون پوري
۴۲ ۴۲ او دا ټول بادشاهان او دَ دوي زمکي په يو وار کښ
يشوع ونيولي ځکه چه خداوند دَ اسرائيل الله دَ اسرائيل
دَ پاره جنګ وکړ
۴۳ ۴۳ او يشوع او ټول اسرائيل ورسره دَ جلجال وديري ته
وجاروتل ❖

# يولسم باب

۱ ۱ او داسي وشوه هرکله چه يابين بادشاه دَ حاصور واوريدل

نو يو باب بادشاه دَ مادون ته او دَ شمرون بادشاه ته او دَ
اکشاف بادشاه ته يُ واستول
۲ ۲ او ټولو بادشاهانو ته چه په شمال کښې په کوهستان
کښې او په عرابه کښې دَ کنروت په جنوبي طرف او په کوز ميدان
۳ ۳ او په لوړو دَ دور مغرب طرف ته او کنعانيانو ته چه په
نمرخاته او په مغرب طرف کښې دي او اموريانو ته او حتيانو
ته او پريزيانو ته او يبوسيانو ته چه په کوهستان کښې دي او
حويانو ته تر حرمون دَ لاندِ دَ مصفاه په زمکي کښې دي
۴ ۴ او هغوي ووتل او ټول فوځونه يُ ورسره ډير خلق لکه
شګي چه دَ درياب په غاړي کښې وي په شمار کښې
۵ ۵ او له ډيرو زيانو آسونو اوګاډو او دغه ټول بادشاهان
راجمع شول او دوي راغلل او يو ځاي ډيره شول دَ ميروم په
۶ اوبو باندِ تا چه له اسرائيل سره وجنګيږي ۶ اوخداوند يشوع
ته وويل ورنه مه ويريږه ځکه چه صبا به زه په داسي وقت کښې
هغه ټول وژلي شوي دَ اسرائيل په مخ کښې درکړم دَ هغو دَ
آسونو به سپيني ووهي او دَ هغوي ګاډي به په اوز وسوځوي
۷ ۷ نو يشوع او ټول جنګيالي سرِي ورسره دَ ميروم په اوبو وربادِ
ناڅاپه راغلل او ورباندِ پريوتل
۸ ۸ او خداوند دوي دَ اسرائيل په لاس کښې ورکړل او
و يُ وهل او دَ لوي صيدون پوري يُ وزغلول او دَ مصرفات الميم
او دَ مصفاه دَ خوره پوري مشرق طرف ته او و يُ وهل ځو چه
هيڅ يو يُ هم په کښې باقي پري نه ښود
۹ ۹ او يشوع ورسره هسي وکړل لکه چه خداوند ورته
ووېل ده دَ هغو دَ آسونه سپيني ووهلي او دَ هغوي ګاډي يُ
۱۰ په اور کښې وسيزل ۱۰ او په هغه وقت کښې يشوع وجاروت او

هاصور ئې ونیود او بادشاه ئې په توري وواهه ځکه چه هاصور
په وړاندِ دَ هغو ټولو بادشاهتونو سر وه
۱۱ ۱۱ او هغه ټول ځانونه چه په کښې وُو ووهل دَ توري په
مخ ئې حرم کړل هیڅ ساه آخستونکي پاتي نه شه او هاصور ئې په
اور وسیزه
۱۲ ۱۲ او دَ هغو بادشاهانو ټول ښهرونو او دَ هغوي بادشاهان
یشوع واخستل او دَ توري په مخ ئې ووهل حرم ئې کړل لکه چه
موسیٰ دَ خداوند بنده وفرمایل
۱۳ ۱۳ تش هغه ټول ښهرونه چه په خپلو غونډیو باندِ ولاړ
وُو اسرائیلو ونه سیزل بي له هاصوره هغه یشوع وسوزاوه
۱۴ ۱۴ او دَ هغو ټولو ښهرونو لُوټ او موېشي بني‌اسرائیلو
دَ خپلو ځانونو دَپارَ بوتلِلي وُو تش هر یو سړي ئې دَ توري په
مخ وواهه تر هغه پوري چه هغوي ئې برباد کړل او هیڅ سا
۱۵ آخستونکي ئې پري نه ښود ۱۵ لکه چه خداوند خپل بنده موسیٰ ته
وفرمایل هغه‌سي موسیٰ یشوع ته وفرمایل او یشوع هغه‌سي وکړل
هیڅ کلام ئې پرې نه ښود له هغو ټولو نه چه خداوند موسیٰ
ته وفرمائل
۱۶ ۱۶ نو یشوع هغه ټوله زمکه واخسته هغه کوهستان او
ټول جنوب او دَ کوشن زمکه او ټول کوز میدان او عرابه او دَ
اسرائیل کوهستان او کوز میدان ئې
۱۷ ۱۷ دَ خالق له غره نه چه سعیر ته خیژي او بعل‌جاد ته دَ
لبنان په خوړ کښې دَ حرمون دَ غره لاندِ او ټول. بادشاهان ئې
واخستل او ولِئ وهل او مړ ئې کړل
۱۸ ۱۸ تر ډیرو ورځو یشوع دي ټولو بادشاهانو سره جنګ وکړ
۱۹ ۱۹ یو ښهر نه وُه چه له بني‌اسرائیلو سره ئې صلحه وکړه بي

له حوِيانو او سيدونكيو دَ جبعون نه بغير نور هيڅ يو ښار نه ؤ چه دَ بني‌اسرائيلو سره ئې صلح وکړه ټول ئې په جنګ واخستل
٢٠ ٢٠ ځکه چه له خداوندَ وشوه چه دَ هغوي زړونه کلک شي چه اسرائيل ته دَ جنګ دَپارَ ووزي دَ دي دَپارَ چه هغوي بيخي نيست کړي چه ورباندِ هيڅ مهرباني ونه شي ليکن چه دوي نيست شي لکه چه خداوند موسیٰ ته وفرمايل
٢١ ٢١ او يشوع په هغه وقت کښ راغي او له کوهستان ئې عناقيم پريکړل له حبرونَ له دبير له عنابَ او دَ يهوداه له ټول کوهستانَ او دَ اسرائيل له ټول کوهستانَ سره له ښهرونو دَ دوي يشوع نيست کړل
٢٢ ٢٢ او دَ عناقيم هيڅوک پاتي نه وُو دَ بني‌اسرائيلو په زمکه کښ تش په عزّاه او په جاتَ او په اشدودَ څه پاتي وُو
٢٣ ٢٣ او يشوع هغه ټوله زمکه واخستله په موافق دَ هغه ټول څه چه خداوند موسیٰ ته حکم وکړ او يشوع اسرائيل ته په وراثت ورکړه دَ دوي دَ ويش او دَ فرقو په موافق او زمکي له جنګ نه قراري وموند ❊

## دولسم باب

١ ١ او دا دَ زمکي بادشاهان دِي چه هغه بني‌اسرائيلو ووهل او دَ هغو زمکه ئې په وراثت واخستله دَ پوري غاړي له يردنَ دَ نمر له ختلو نه دَ ارنونَ له کندي نه تر غره دَ حرمونَ پوري او ټوله عرابه تر نمرخاته پوري
٢ ٢ سيحون بادشاه دَ اموريانو چه په حشبون کښ اوسيده چه حکومت ئې وکړ له عراعر نه چه دَ ارنونَ دَ کندي په کناري دِي او دَ کندي په مينځ کښ دي او نيم جلعادَ دَ يبوقَ تر کندي پوري چه دَ بني‌عمونَ سرحد دِي
٣ ٣ او عرابه دَ کنروتَ تر درياب پوري دَ نمرخاته په طرف

او دَ عرابې تر درياب پوري دَ مالګين درياب دَ نمرخاته په طرف
دَ بيتِ يشيموت په لاري او دَ جنوب په طرف دَ پسګاه دَ لمنِ لاندِ
۴ ۴ او دَ باشان دَ بادشاه دَ عوج سرحد چه له رفائيم نه
باقِي وه چه په عشتاروت او په ادرعِي کښې اوسيده
۵ ۵ او چه ده دَ حرمون په غره او په سلکه او په ټول
باشان کښې تر حدَ دَ جشوريانو پوري او دَ معکاتيانو او نيم جلعاد
حد دَ صيحون بادشاه دَ حشبون ئې حکومت وکړ
۶ ۶ او موسیٰ دَ خداوند بنده او بني اسرائيلو هغوي ووهل
او موسیٰ بنده دَ خداوند روبيانو ته او جاديانو ته او نيمي
فرقي دَ منسّي ته ئې په ميراث ورکړ
۷ ۷ او دا هغه بادشاهان دَ هغي زمکي دِي چه يشوع او
بني اسرائيلو ووهل په پوري غاړه دَ يردن دَ مغرب په طرف تر
بعل جد دَ لبنان په خوړ کښې تر خلق دَ غره پوري چه سعير
ته خيژي او يشوع دَ اسرائيل وفرقو ته دَ هغو دَ صوبو په
موافق په ميراث ورکړل
۸ ۸ په کوهستان او په ميدان او په عرابه او په لمنو او په
بيابان او په جنوب حتيان اموريان کنعانيان پريزيان حويان يبوسيان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۹ | بادشاه دَ يريحا | يو | | بادشاه دَ جزر | يو |
| | بادشاه دَ عَيْ چه بيتِ ايل | | ۱۳ | بادشاه دَ دبير | يو |
| | څنګه دَي | يو | | بادشاه دَ جدر | يو |
| ۱۰ | بادشاه دَ اورشليم | يو | ۱۴ | بادشاه دَ حورمه | يو |
| | بادشاه دَ حبرون | يو | | بادشاه دَ عراد | يو |
| ۱۱ | بادشاه دَ يرموت | يو | ۱۵ | بادشاه دَ لبناه | يو |
| | بادشاه دَ لاکيس | يو | | بادشاه دَ عدلام | يو |
| ۱۲ | بادشاه دَ عجلون | يو | ۱۶ | بادشاه دَ مقيده | يو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | بادشاه دَ بیت‌ایل یو | | بادشاه دَ اکشاف یو | |
| ۱۷ | بادشاه دَ تفوح یو | ۲۱ | بادشاه دَ تعنک یو | |
| | بادشاه دَ حفر یو | | بادشاه دَ مجدّو یو | |
| ۱۸ | بادشاه دَ افیق یو | ۲۲ | بادشاه دَ قادش یو | |
| | بادشاه دَ لشارون یو | | بادشاه دَ یقنیعام په کرمل کښ یو | |
| ۱۹ | بادشاه دَ مادون یو | ۲۳ | بادشاه دَ دور په لورو دَ دور کښ یو | |
| | بادشاه دَ هاصور یو | | بادشاه دَ جویم په جلجال کښ یو | |
| ۲۰ | بادشاه دَ شمرون مرائون یو | ۲۴ | بادشاه دَ ترضه یو | |

ټول بادشاهان یو دیرش وُو ❊

# دیارلسم باب

۱ آ او یشوع زوړ شه او په ورځو کښ زیات او خداوند ورته
وویل ته اوس زوړ او په ورځو کښ زیات شوي يي او زمکه ډېره
زیاته دَ میراث دَپاره پاتي ده
۲ ۲ دا هغه زمکه ده چه پاتي دَه ټول اطراف دَ فلسطیانو
ودَ ټولو جشوریانو
۳ ۳ له شیحوره چه دَ مصر په مخ کښ دَي او دَ عقرون
تر سرحدَ پوري قطب طرف ته چه دَ کنعانیانو شماریږي پنځه
سرداران دَ فلسطیانو او غزاتیان او اشدودیان او اسقلونیان
او جاتیان او عقرونیان
۴ ۴ او عویان هم چه په جنوب طرف کښ دِي ټوله زمکه
دَ کنعانیانو او مغاره چه دَ صیدانیانو ده تر افیق پوري تر
سرحدَ دَ اموریانو
۵ ۵ او زمکه دَ جبلیانو او ټول لبنان دَ نمرخاته په طرف
له بعل‌جاده دَ حرمون دَ غره لاندِ دَ حمات تر ننه‌وتلو پوري
۶ ۶ او ټول اوسیدونکي دَ کوهستان له لبنانَ تر مصرفوت مایمَ

ټول صیدوني زه دوي دَ بني‌اسرائیلو له مخَ لري کوم تش ته اسرائیلو
له په ویش سره دَ میراث دَپارَ مقرّر کړه لکه چه ما تاته وفرمائیل
۷ ۷ او اوس دا زمکه وویشه په ویراثت سره ټهو فرقو ته او دَ
منسّي نیمي فرقي ته
۸ ۸ هغي سره روبینیانو اوجدیانو خپل میراث واخست چه
موسیٰ ورته ورکړ په پوري غاړه دَ یردن نمرخاته طرف ته لکه
چه موسیٰ دَ خداوند بنده هغوي ته ورکړ
۹ ۹ له عراعره چه دَ ارنون دَ رود په غاړه دَي او هغه
ښهر چه دَ رود په مینځ کښ دي او ټول اوچت میدان دَ میدبا
تر دیبون پوري
۱۰ ۱۰ او ټول ښهرونه دَ صیحون بادشاه دَ اموریانو چه په
حشبون کښ ئي بادشاهت وکړ دَ بني‌عمون تر سرحدَ پوري
۱۱ ۱۱ او جلعاد او دَ جشوریانو او دَ معکاتیانو سرحد او ټول
غر دَ حرمون او ټول باشان تر سلکه پوري
۱۲ ۱۲ ټول بادشاهت دَ عوج په باشان چه په عشتاروت
او ادرعَي کښ ئي بادشاهت وکړ چه له رفائیو نه باقي پاتي وه
څکه چه موسیٰ دوي ووهل او وئي شړل
۱۳ ۱۳ او بني‌اسرائیلو هغه جشوریان او هغه معکاتیان
ونه شړل لیکن جشوري او معکي دَ اسرائیل په مینځ کښ
تر دي ورځي پوري اوسیدونکي شول
۱۴ ۱۴ تش دَ لیوي وفرقي ته ئي میراث ور نه کړ دَ اور
قرباني دَ اسرائیل دَ خداوند الله دَ هغوي میراث دِي لکه چه
ده ورته کلام وکړ
۱۵ ۱۵ او موسیٰ دَ بني روبین فرقي ته دَ هغوي دَ خیلخانو
۱۶ په موافق ورکړ ۱۶ او حد ئي له عراعره چه دَ ارنون دَ کندي

په كناري او هغه ښهر چه دَ كندي په مينځ كښ دي او ټول
هغه اوچت ميدان چه په ميدبا كښ دي
١٧ ١٧ حشبون او ټول ښهرونه دَده چه په اوچت ميدان
كښ دي د ديبون او باموت بعل او بيت بعل معون
١٨ ١٨ او يهصه او قديموت او ميفاعه
١٩ ١٩ او قريتايم او سبمه او صارت شحر دَ خوړ په غره كښ
٢٠ ٢٠ او بيت فغور او دامان دَ پسګاه او بيت يسيموت
٢١ ٢١ او ټول ښهرونه دَ اوچت ميدان او ټول بادشاهت دَ
صيحون بادشاه دَ اموريانو چه په حشبون كښ ئي بادشاهت وكړ
چه موسىٰ دي وواهه او ټول رئيسان دَ مديان ورسره آوي او
راقم او صور او حور او رابع چه اميران دَ صيحون وُو اوسيدونكي
د دي زمكي
٢٢ ٢٢ او بلعام دَ بعور ځوي هغه فال آچونكي هم بني‌اسرائيلو
دَ هغوي نورو مقتولانو په مينځ كښ په تُوري سره وواهه
٢٣ ٢٣ او دَ بني‌روبين حد يردن وه او دَ هغه حد دا دَ
بني‌روبين ميراث وه دَ دوي دَ خيلخانو په موافق دَ هغه ښهرونه
او كلي ئي
٢٤ ٢٤ او موسىٰ دَ جد فرقي ته دَ جد ځامنو ته دَ هغو دَ
خيلخانو په موافق ورکړ
٢٥ ٢٥ او دَ هغه حد يعزير او ټول ښهرونه دَ جلعاد او
نيمه زمكه دَ بني‌عمون تر عراعره پوري چه دَ ربّه په مخ كښ ده
٢٦ ٢٦ او له حشبون نه تر رامت‌المصفاه او بطونيم او له محنايم
نه تر حد دَ دبير
٢٧ ٢٧ او په خوړ كښ بيت هارام او بيت نمره او سكوت او
صافون باقي پاتي شوي بادشاهت دَ حشبون بادشاهت دَ سيحون

يردن ښخه او هغه حد د کنروت د درياب پوري د يردن نمرخاته
۲۸ طرف ته ۲۸ دا ميراث د بني جد دي د دوي د خيلخانو په موافق
ښهرونو او کلي ئي
۲۹ ۲۹ او موسیٰ نيمي فرقي د منسّي ته ورکړه او دغه نيمه فرقه
د بني منسّي د پاره وه د هغه د خيلخانو په موافق
۳۰ ۳۰ او د هغه حد له محنايم وه ټول باشان ټول بادشاهت
د عوج د باشان د بادشاه او ټول کلي د يائر چه په باشان
۳۱ کښ دي شپيته ښهرونه ۳۱ او نيم جلعاد او عشتاروت او اذرعي
ښهرونو د بادشاهت د عوج په باشان کښ بني ماکر د پاره د
منسّي د ځوي نيم بني ماکر له د هغوي د خيلخانو په موافق
۳۲ ۳۲ دا هغه ويراثتونه دي چه موسیٰ د مواب په ميدانونو
کښ ويش وکړ پوري غاړه د يردن له يريحا نه نمرخاته طرف ته
۳۳ ۳۳ ليکن د ليوي فرقي ته موسیٰ هيڅ ميراث ور نه کړ
يهوه الله د اسرائيل د هغه ميراث دي لکه چه ده ورته ويلي

## څوارلسم باب

۱ ۱ او دا هغه ويراثتونه دي چه بني اسرائيلو د کنعان په زمکه
کښ واخستل چه اليعاذر کوهن او يشوع د نون ځوي او سردارانو
د پلارونو د بني اسرائيلو له فرقو نه په هغوي ويش وکړ د
هغوي د ويراثت په هِسک سره
۲ ۲ لکه چه خداوند د موسیٰ له لاس وفرمايل د نهو
فرقو د پاره او د نيمي فرقي د پاره
۳ ۳ ځکه چه موسیٰ د دوو فرقو او د نيمي فرقي د يردن په
پوري غاړه ورکړ او لاويانو ته ئي د هغو په مينځ کښ ويراثت
ور نه کړ
۴ ۴ ځکه چه د بني يوسف دوه فرقي وي منسّي او افرائيم

او دوي په زمکه کښې حصه ليويانو ته ور نه کړه بې له ښهرونو
دَ اوسيدلو دَپارَ او چراګاهونه دَ دوي دَ مويشيو او دَ مال دَپارَ
۵ ۵ لکه چه خداوند موسیٰ ته و فرمائيل هم هسي بني اسرائيلو
وکړل او دوي هغه زمکه وويشله
۶ ۶ او بني يهودا يشوع ته په جلجال کښې نژدي شول او کالب
دَ يَفُنّه ځوي قنزِي ور ته ووئيل ته پوهيږې هغه خبره چه
خداوند موسیٰ مرد دَ الله ته {ستا په باب / او ځما په باب} کښې په قاديش برنيعا
کښې و فرمائله
۷ ۷ زه څلويښت کلني وَم چه موسیٰ بنده دَ خداوند زه
واستولم تاچه دَ قاديش برنيعا دَ زمکي جاسوسِي وکړم او ما
لکه چه ځما په زړه کښې وُوَ خبره مِ ورو کړزوله
۸ ۸ او ځما وروڼړه چه له ما سره وختل دَ اُمّت زړه يې
ويلي کړ ليکن زه په خداوند خپل الله پسي پُوره تلم
۹ ۹ او موسیٰ هم په هغه ورځ قسم وخوړ و ئې ويل په
يقين سره هغه زمکه چه په کښې ستا پښي و دربلي شِي تا ته
به ميراث شِي او ستا دَ ځامنو دَپارَ تر هميشه پوري ځکه
چه تا دَ خداوند الله ځما پُوره پيروِي وکړه
۱۰ ۱۰ او اوس ګوره خداوند زه ژوندي ساتلي يم لکه چه
ده ووئيل په دغو پنځه څلويښتو کالو کښې له هغه وقتَ چه
خداوند دغه خبره موسیٰ ته و فرمايله هرکله چه اسرائيل
په بيابان کښې ګرزيدل او ګوره اوس زه نن ورځ دَ پنځه اتيا
کالو يم
۱۱ ۱۱ تر اوسَ پوري نن ورځ هسي تکړه يم لکه چه په
هغو ورځو کښې چه موسیٰ زه ور واستولم لکه چه ځما قوت هغه
وقت وه اوس ځما قوّت هم هغه سي دَي دَ جنګ دَپارَ او دَ

ورتلو راتلو دَپارَ
۱۲ ۱۲ او اوس ماته دا غر راکړه چه دَده په باب کښ خداوند
هم په هغه ورځ وويل ځکه چه تا آوريدلي دِي هم په هغه
ورځ کښ چه عناقيم هلته وه او لوي او قلعه دار ښهرونه کمان
مِ دي که خداوند ځما سره وِي نو وبه ئي شړم لکه چه خداوند
ويلي دِي
۱۳ ۱۳ او يشوع وله برکت ورکړ او هغه حبرون ئي کاليب دَ
يفُنَّه ځوي ته دَ ميراث دَپارَ ورکړ
۱۴ ۱۴ له دي سببَ حبرون کاليب دَ يفُنّه ځوي قنزِي ته تر
نن ورځي پوري ميراث شه په دي سبب چه دَ خداوند الله دَ
اسرائيل ئي پُوره پيروِي وکړه
۱۵ ۱۵ او نوم دَ حبرون وړاندِ قريتِ اربعه وه هغه لوي سړي
وه دَ عناقيانو په مينځ کښ او زمکه له جنګ نه په آرام شوه

# پنځلسم باب

۱ ۱ او دَ بني يهودا دَ قوقو دَپارَ دا حِسک وشه دَ هغوي دَ خيلخانو
په موافق دَ ادوم ترحدَ پوري دَ سين بيابان ته جنوب طرف ته
په لري حد دَ جنوب کښ
۲ ۲ او دَ هغه جنوبي حد پوري غاړي ته دَ مالګين درياب
له هغي ژبي نه چه دَ جنوب په طرف وه
۳ ۳ او دَ عقرابيم له ختلو دَ جنوب له طرفه ووت او تر
سينَ پوري تير شه او دُ قاديش برنيعا جنوب طرف ته وخوت
حصرون ځنګه تير شه او آدار ته وخوت او قرقع ته وګرزيده
۴ ۴ او عصمون ته تير شه او دَ مصر په بحر وخوت او
حد دَ وتلو تعرِ درياب ځنګه وه دا به ستاسو جنوبي حد وِي
۵ ۵ او مشرقي حد ئي مالګين درياب وه دَ يردن تر انتہا پوري

او دَ قطب طرف ته حد دَ درياب له ژبي نه چه دَ يردن په
انتها كښې دَي
۶ ۶ او حد بيت حجله ته وخوت او دَ بيت عرابه قطب طرف
ته تير شه او حد دَ بوهن دَ روبين دَخوي كاڼړي ته وخوت
۷ ۷ او حد دَ عاكور له خوړ نه تر دَبيره وخوت او هسي قطب
طرف ته جلجال طرف ته چه دَ آدوميم په ختلو برابر دي چه
دَ رود په جنوب طرف دَي او حد دَ عين شمس اوبو ته تير شه
اووتل دَ هغه په عين روجل وُو
۸ ۸ او سرحد دَ بني هنوم په خوړ كښې وخوت دَ يبوسي
وړړي ته هم دغه يروشليم دَي او سرحد دَ هغه غره وخوكي
ته وخوت چه دَ هنوم دَ خوړ په مخ كښې دَي مغرب طرف ته
چه انتها دَ حصي يُ دَ رفائيم دَ خوړ قطب طرف ته دَه
۹ ۹ او هغه حد دَ غره له سره تر نفتوح تر چيني و اوبو ته
ښكلي وه او دَ عفرون دَ غره ښهرونو ته ووت او حد تر بعلاه
پوري وښكلي وه هم دغه قريت يعريم دَي
۱۰ ۱۰ او حد دَ بعلاه نه مغرب طرف ته وګرزيده دَ سعير
و غره ته او دَ يعريم دَ غره دَ قطب په اوړي تير شه
{هم دغه كسالون دَي} او بيت شمس ته كوز شه او په تمناه
تير شه
۱۱ ۱۱ او حد دَ عقرون په ډډه ووت قطب طرف ته او هغه
حد شكرون ته وښكلي وه او دَ بعلاه وغره ته تير شه او
په يبنئيل ووت او وتنه دَ حد درياب څخه وه
۱۲ ۱۲ او حد دَ مغرب طرف ته لوي درياب وه دا هغه
حد دي دَ بني يهودا چاپيره دَ هغوي دَ خيلخانو په موافق
۱۳ ۱۳ او كالب دَ يفنّه خوي ته يوه حصّه دَ بني يهودا په

مینځ کښې ورکړه دَ خداوند دَ ويلو په موافق يشوع ته هغه
قريتِ اربع دَ عناق دَ پلار { هم دغه حبرون دَي }
۱۴ او کالب له هغه ځاي نه هغه دري ځامن دَ عناق ۱۴
شيشي او احيمان او تلمي اولاد دَ عناق وشړل
۱۵ او له دي ځاي نه اوسيدونکيو دَ دبير ته وخوت او دَ ۱۵
دَبير نوم وړاندِ قريت سفر وه
۱۶ او کالب وويل هغه چه قريت سفر ووهي او وني نيسي ۱۶
هغه ته به زه عکسه خپله لور په نکاح ورکړم
۱۷ او غتنئيل دَ قناز ځوي دَ کالب ورور واخست او ۱۷
هغه ته ئي عکسه خپله لور په نکاح ورکړه
۱۸ او داسي وشوه چه دا راغله و ئي لمسوله چه له خپل ۱۸
پلار نه پټي وغواړي او له خپل خره نه کوزه شوله نو کالب
ورته وويل چه دا څه کوي
۱۹ او دي وويل تا ماته برکت راکړ چه جنوبي زمکه دِ ماته ۱۹
رابخښلي دَه دَ اوبو چيني هم ماله راکړه او هغي ته ئي پاسنئِ
چيني او کوزنئ چيني هم ورکړي
۲۰ دا هغه ميراث دَ بني يهودا دَ فرقي دَ هغوي دَ خيلخانې ۲۰
په موافق دي ۲۱ او انتها دَ ښهرونه دَ فرقي دَ بني يهودا دَ ادوم ۲۱
دَ غاړي په طرف په جنوب کښې قبصئيل او عِدر او ياجور وو
۲۲ او قينه او ديمون او عدعده ۲۲
۲۳ او قادش او حاصور او يثنان ۲۳
۲۴ زيف او طالم او بعلوت ۲۴
۲۵ او حاصورحدته او قريوت حصرون { هم دغه حاصور دي } ۲۵
۲۶ امام او شماع او مولاده ۲۶
۲۷ او حصرجده او حشمون او بيتِ فالط ۲۷

٢٨ ٢٨ اوحصرشوعال او بيرسبع او بزيوتيه
٢٩ ٢٩ او بعله او عيئيمّ او عاصم
٣٠ ٣٠ او الْتُولَدْ او كسيل او حرمه
٣١ ٣١ او صقلغ او مدمنه او سنسنه
٣٢ ٣٢ او لباأوت او شلحيم او عينّ او رمون ټول ښهرونو دَ
هغو له كليو سره نه ويشت دِي
٣٣ ٣٣ او په كوز ميدان كښې اشتاول اوصرعه او اشنّه
٣٤ ٣٤ او زانوح او عين‌جنيم او تفوح او عينام
٣٥ ٣٥ يرموت او عدولام سوكوه او عزيقه
٣٦ ٣٦ او شعرايم عدِيتايم اوجديرا اوجديروتايم څوارلس
ښهرونه دَ هغو دَ كليو سره
٣٧ ٣٧ صنان حداشه او مجدل‌جاد
٣٨ ٣٨ او دلعان او مصفاه او يقتئيل
٣٩ ٣٩ لاكيش او بصقه او عجلون
٤٠ ٤٠ او كبون او لحمام او كتليش
٤١ ٤١ او جديروت بيت داجون او نعمه او مقيده شپاړس ښهرونه
دَدوي دَ كليو سره
٤٢ ٤٢ لِبناه او عاتر او عاشان
٤٣ ٤٣ او يفتاح او اشنه او نصيب
٤٤ ٤٤ او قعيله او اكزيب او ماريشه نه ښهرونه دَدوي دَ كليو
سره
٤٥ ٤٥ عقرون او ښهرونه ئې او كلي ئې
٤٦ ٤٦ له عقرونَ تر لويه درياب پورې ټول هغه چه دَ اشدود
په ډډه وُو دَدوي دَ كليو سره
٤٧ ٤٧ اشدود او دَ هغه ښهرونه او كلي ئې عزّه او ښهرونه

ئې او کلي يې دَ مصر تر سينده پورې او دَ لوي درياب او دَده
دَ غاړې پورې
۴۸ او په کوهستان کښ شامير ويتير او سوکوه ۴۸
۴۹ او دنّه او قريت سنّه { هم دغه دَبير دي } ۴۹
۵۰ او عناب او اشتموه او عانيم ۵۰
۵۱ او جوشن او حولون او جيلوه يوُلس ښهرونه او کلي يې ۵۱
۵۲ اراب او دوماه او اشعان ۵۲
۵۳ او ينوم او بيت تفوح او آفيقه ۵۳
۵۴ او حمطاه او قريت اربع { هم دغه حبرون دي } او صيعور ۵۴
نهٔ ښهرونه دَده دَ کليو سره
۵۵ معون او کرمل او زيف او يوطاه ۵۵
۵۶ او يزرعيل او يقدعام او زانوح ۵۶
۵۷ قائين او جبعه او تمنه لس ښهرونه دَدوي دَ کليو سره ۵۷
۵۸ حلحول بيت صور او جدور ۵۸
۵۹ او معاره او بيت عنوت او اَلتقون شپږ ښهرونه دَ دوي ۵۹
دَ کليو سره
۶۰ قريت بعل { هم دغه قريات يعاريم دي } او رُبّاه دوه ۶۰
ښهرونه دَ دوي دَ کليو سره
۶۱ په بيابان کښ بيت عرابه مِدّين او سکاکه ۶۱
۶۲ او نبشان او دَ مالګي ښهر او عين جِدي شپږ ښهرونه دَ دوي
دَ کليو سره
۶۳ او يبوسيان چه په اورشليم کښ اوسيدونکي ۶۳
دِي بنِي يهودا ونه توانيدل چه وئې شړي او يبوسيان
له بنِي يهودا سره په اورشليم کښ تر دې ورځو پورې
اوسي ⁘

# شپاړسم باب

۱ آ او دَ بني یوسف دَپارَ هِسک له یردن نه په یریحا ووت دَ
یریحا په اوبو باندِ نمرخاته طرف ته هغه بیابان چه له یریحا
نه په کوهستان کښ تر بیت ایل پوري خیژي
۲ ۲ او هغه له بیت ایل نه تر لوزه ووت او دَ عاقیانو
ترحد پوري عطاروت ته تیر شه
۳ ۳ او مغرب طرف ته دَ یفلیطیانو ترحد پوري کوز شه
دَ کوزني بیت حورون ترحد پوري او تر جازر پوري او دَ هغه
وتنه په لوی دریاب وه
۴ ۴ او بني یوسف منسّي او افرائم خپل ویراثت واخست
۵ ۵ او دَ بني افرائم حد دَدوي دَ خیلخانو په موافق داسي وشه
چه دَ دوي دَ ویراثت حد دَ نمرخاته په طرف دَ عطاروت اڈار
تر پاسني بیت حورون پوري وه
۶ ۶ او دَ مکمته په قطب طرف حد دَدوي دریاب طرف ته
ووت او هغه حد نمرخاته طرف ته کوزیده تر تانته سیلوه
پوري او دَ هغه په خواکښ تیر شه دَ یانوح دَ نمرخاته په طرف
۷ ۷ او له ینوحانه تر عطاروت او نعرات ته کوز شه او
یریحا ته ورسیده او یردن ته ووت
۸ ۸ له تفوح نه حد مغرب طرف ته دَ قانه ولي ته تیر
شه او وتنه ئي په لوي دریاب باندِ وه دا هغه ویراثت دَي دَ
۹ بني افرائم دَ قوْم دَ هغوي دَ خیلخاني په موافق ۹ او هغه بنهرونه
چه دَ بني افرائیم دَپارَ بیل کړي شول دَ بني منسّي دَ ویراثت په
مینځ کښ ټول بنهرونه دَ هغوي دَ کلیو سره وُو
۱۰ ۱۰ او هغوي هغه کنعانیان چه په جازر کښ اوسیدونکي

وُو و نه شړل ليکن کنعانيان دَ افرائيم په مينځ کښ اوسيدل
تر دي ورځي پوري او غلامان شول د بيګار کولو دَپارَ ٭

# اوه لسم باب

١ آ او دا دَ منسّي دَ فرقي دَپارَ هِسک وه ځکه چه دا دَ يوسف
مشري وه او دَ ماکير دَپارَ چه دَ منسّي مشري وه او دَ جِلعاد
پلار وه ځکه چه دا جنګيالي سړي وه نو دَ هغه دَپارَ جِلعاد
او باشان وُو
٢ ٢ او دَ بني منسّي دَ پاتي شوبو دَپارَ دَ دوي دَ خيلخانو په
موافق دَ بني ابيعزر دَ بني حالق دَ بني اسري ايل دَ بني شکم دَ
بني حافر او دَ بني شميداع دَپارَ دوي دَ بني منسّي دَ يوسف دَ ځوي
نارينه هلکان وُو دَ دوي دَ خيلخانو په موافق
٣ ٣ ليکن دَ صلفحاد دَ حافر دَ ځوي دَ جِلعاد دَ ځوي دَ ماکير
دَ ځوي دَ منسّي دَ ځوي ځامن نه وُو ليکن لونړه ئې وي او دا
ئې نومونه دِي دَ هغه دَ لونړو محلاه او نوعه او حجله او ملکاه
او ترصه
٤ ٤ او دغه نژدي راغلي په مخ کښ دَ اليعاذر کوهِن او په
مخ کښ دَ يشوع دَ نون دَ ځوي او په مخ کښ دَ رئيسانو او وئي
ويل چه خداوند موسیٰ ته و فرمائل چه مونږ ته دِ ميراث راکړي
شي ځمونږ دَ ورونړو په مينځ کښ او دوي ته دَ خداوند دَ قول
په شان ميراث ورکړي شه په مينځ دَ ورونړو دَ دوي دَ پلار
٥ ٥ او لس حصّي منسّي ته و رسيدلي بي دَ جِلعاد او دَ باشان
له زمکي نه چه پوري غاړه له يردن ده
٦ ٦ ځکه چه دَ منسّي لونړو دَ هغو دَ ځامنو په مينځ کښ ميراث
٧ واخست او دَ جِلعاد زمکه دَ باقي بني منسّي شوه ٧ او حد دَ

منسّي له اشير نه تر مكمته پوري وه چه دَ شكم په مخ كښې
دَي او هغه حد په ښي لاس دَ عين تفوح اوسيدونكو ته ورسيد
۸ ۸ دَ منسّي دَپارَ دَ تفوح زمكه وه ليكن تفوح دَ منسّي په حد
۹ كښې دَ بني افرائيم وه ۹ او حد دَ قانه ولي ته كوز شه دَ ولي دَ
جنوب په طرف دا ښهرونه دَ افرائيم وُو دَ منسّي دَ ښهرونو په
منځ او حد دَ منسّي دَ ولي دَ قطب په طرف وه او وتنه ئې
۱۰ په لوي درياب وه ۱۰ جنوب طرف ته دَ افرائيم وه او قطب طرف
دَ منسّي وه او لوي درياب دَ هغه سرحد وه او په قطب
كښې اشير ته ورسيد او نمرخاته طرف ته دَ يساكر وه -
۱۱ ۱۱ او په يساكر او په اشير كښې منسّي ته بيت‌شان اودَ هغو
كلي او يبلعام او دَده كلي او دَ دور اوسيدونكي او دَدوي كلي
او عين دور او دده كلي او اوسيدونكي دَ تعناك اودَدوي كلي
۱۲ اودمجدو اوسيدونكي اودوي كلي دري لوړ ځايونو ۱۲ او بني منسّي و نه
توانيده چه دَ هغوي ښهرونو په قبضه كښې كړي ليكن كنعانيانو
۱۳ هم په هغه زمكه كښې اوسيدل وغوښتل ۱۳ او داسي وشوه
هركله چه بني‌اسرائيل تكړه شول نو دوي كنعانيان دَ بيكار لاندِ
كړل او بيخي ئې و نه شړل

۱۴ ۱۴ او بني يوسف يشوع سره خبري وكړي وئې ويل ولي
تا ماته يو هِسک او يوه حصه په ميراث راكړه او زه ډير امت
۱۵ يم او تر اوسه پوري خداوند ماته بركت راكړي دَي ۱۵ او يشوع
ورته وويل كه ته ډير اُمّت يي نو ځنګل ته وخيژه او دَ خپل
ځان دَپارَ هلته دَ پريزيانو او دَ رفائيميانو په زمكه كښې پريكړه
۱۶ كه دَ افرائيم غر په تا باندِ تنګ وي ۱۶ او بني‌يوسف وويل كوهستان
ځمونږ دَپارَ بس نه دي او ټول كنعانيان چه دَ خوږ په زمكه
كښې اوسيږي دَ اوسپني ګاډي لري هم هغه چه په بيت‌شان او

دَده کِلي او هم هغه چه دَ يزرعيل په خوړ کښِ دِي ۱۷ او يشوع ۱۷
دَ يوسف کور ته ووِيل له افرائيم او له منسّي سره ئي وويل ته
لوي اُمت يې او لوي قوّت لرې ستا يوه حصّه به نه وِي ځکه
چه کوهستان به ستا شِي ۱۸ اګر که ځنګل دي ته به ئي پرېکوي ۱۸
او دَ هغه دَ وتني ځاي به ستا وِي ځکه چه ته هغه کنعانيان
به وشړي اګر که دَ اوسپني ګاډي لرِي او اګر که دوي تکړه دِي

# اتلسم باب

۱ او ټول جماعت دَ بنِي اسرائيل په شيلوه سره جمع شه او دَ ۱
جماعت مسکن ئي هلته ودراوه او هغه زمکه دَ هغو دَ وړاندِ
مغلوب شوه ۲ او په بنِي اسرائيل کښِ اوه فرقي پاتي وي چه خپل ۲
ميراث ئي نه وه ويشلي ۳ او يشوع بني اسرائيلو ته وويل ترڅو بوري ۳
به سُستي کوئِ دَ زمکي له نيوتلو او له قبضي کولو نه چه خداوند
ستا دَ پلارونو الله تاسو ته درکړي ده ۴ درې کسه له هرې يوي ۴
فرقي نه دَ خپلو ځانونو دَپارَ مقرّر کړئ او زه به ئي واستوم او هغوي
به پورته شِي او په زمکه کښِ به وګرزي او هغه به وليکِي
دَ خپل ميراث په موافق او ما ته به راشِي ۵ او هغه به ئي په ۵
اوه ويشونو وويشِي يهودا په خپل حد په جنوب کښِ به اوسِي
او دَ يوسف کور به په خپل حد په قطب کښِ اوسِي ۶ او تاسو ۶
به هغه زمکه په اوه ويشونو کښِ وليکئِ او ما ته به ئي راوړئِ
او زه به دلي دَ خداوند ستاسو دَ الله دَ وړاندِ پچه واچوم
۷ ځکه چه ليويان دَ تاسو په مينځ کښِ ويش نه لرِي ځکه چه کوهنت ۷
دَ خداوند دَ هغو ميراث دَي او جد او روبين او نيمي فرقي دَ
منسّي خپل ميراث آخستلي دي په پوري غاړه دَ يردن نمرخاته
طرف ته چه موسیٰ بنده دَ خداوند دوي ته ورکړ ۸ او هغه ۸

سرِي پورته شول او لارِل او یشوع هغو ته چه دَ زمکي دَ لیکلو
دَپارَ تلل وویل چه لاړ شئ او په زمکه وګرزئ او وئ لیکئ
بیا ما ته بیرته راشئ او زه به دلته په شیلوه کښ دَ خداوند
۹ دَ وړاندِ ستاسو دَپارَ پچه واچوم ۹ او هغه سرِي لاړِل او په زمکه
کښ تیر شول او ښهر په ښهر ئي په اوه ویشو په یو کتاب
۱۰ کښ وليکل او یشوع ته دَ شیلوه ډیري ته راغلل ۱۰ او یشوع
په شیلوه کښ دَ خداوند دَ وړاندِ دَدوي دَپارَ پچه واچوله
او هلته کښ یشوع هغه زمکه بني اسرائیل ته دَ هغو دَ فرقو
په موافق و ویشله

۱۱ ۱۱ او هِسک دَ بني بنیامین دَ فرقي دَدوي دَ خیلخانو په موافق
وخوت او حد دَدوي هِسک دَ بني یهودا او دَ بني یوسف په مینځ
۱۲ کښ ووت ۱۲ او دَدوي حد دَ قطب په اطراف له یردن نه وه
او حد دَ یریحا په لوړه قطب طرف ته وخوت او په کوهستان
کښ مغرب طرف ته وخوت او دَ بیت آون بیابان ته دَ هغه
۱۳ دَ وتني ځاي وه ۱۳ او حد له هغي نه تر لوز پوري تیر شه دَ
لوز و لوري ته {هم دغه بیت ایل دي} جنوب طرف ته او حد
عطاروت ادار ته کوز شه په هغه غر چه دَ کوز بیت حورون په
۱۴ جنوب طرف دَي ۱۴ او حد کینبلي شه او ګرزیده په دریابي حصي
جنوب طرف ته له هغه غر نه چه په مخ کښ دَ بیتِ حورون
دَي جنوبي طرف ته او دَ وتني ځاي ئي په قریت بعل وه {هم دغه
۱۵ قریت یعاریم دَي} ښهر دَ بني یهودا دا دریابي حصه وه ۱۵ او
جنوبي حصه دَ قریت یعاریم له انتها نه وه او حد دریاب طرف
۱۶ ته وخوت او دَ نفتوح دَ اوبو وچیني ته ووت ۱۶ او حد دَ هغه
غره تر آخره کوز شه چه دَ بن هنوم دَ دري په مخ کښ دَي چه
په خوړ دَ رفائیم کښ دَي دَ قطب طرف ته او دَ هنوم و دري

ته کوز شه په ښنګ دَ یبوسِي جنوب طرف ته او عین روجل ته
کوز شه ۱۷ او په قطب طرف کښلي وه او په عین شمس ووت او ۱۷
په جلیلوت ووت چه دَ ادومیم په مقابل ختلي دَي ۱۸ او هغه ۱۸
دَ بوهن دَ روبین دَ ږوي وکاڼي ته کوز شه او هغه دَ عراباه
دَ لوړي په مخ کښښ تیر شه قطب طرف ته او عراباه ته کوز شه
۱۹ او حد دَ بیت حجله ترښنګ تیر شه قطب طرف ته او وتنه ۱۹
دَ حد دَ مالګین درياب په قطبي ژبي وه دَ یردن په جنوبِي طرف
کښښ دا جنوبِي حد وه ۲۰ او یردن دَ هغه حد وه په مشرق طرف ۲۰
کښښ دا میراث وه دَ بِني بنجمین شا او خوا حدونه دَ دوي دَ خیلخانو
په موافق ۲۱ او ښهرونه دَ فرقي دَ بِني بنجمین دَ دوي دَ خیلخانو ۲۱
په موافق یریحا او بیت حجله عمق دَ قصیص ۲۲ او بیت عراباه ۲۲
او صماریم او بیت ایل ۲۳ او عویم او فاره او عفره ۲۴ او کفرعمونِي ۲۳ ۲۴
او عُفنِي او جابع دولس ښهرونه دَ دوي دَ کلیو سره ۲۵ جبعون ۲۵
او رامه او بیروت ۲۶ او مصفاه او کفیره او موضه ۲۷ او راقم او ۲۶ ۲۷
برفئیل او ترالاه ۲۸ او صلع او الف او یبوسِي {هم دغه اورشلیم ۲۸
دَي} جبعت قریت څوارلس ښهرونه دَ دوي دَ کلیو سره دا دَ
بِني بنجمین میراث دَي دَ دوي دَ خیلخانو په موافق ✣

# نولسم باب

۱ او دویم ځسک دَ شمعون دَپارَ ووت دَ بِني شمعون دَ فرقي ۱
دَپارَ دَ دوي دَ خیلخانِي په موافق او دَ دوي میراث دَ بِني یهودا دَ
میراث په مینځ کښښ وه ۲ او دَ دوي په میراث کښښ دوي ته وشول ۲
بیرشبع — او شبع او مولاده ۳ او حصرشوعال او بالاه او عاصم ۳
۴ او التولد او بتول او حرمه ۵ او صقلغ او بیت مرکبوت او ۴ ۵
حصرسوسه ۶ او بیت لباوت او شاروحن دیارلس ښهرونه دَ ۶

۷ دوي دَ کليو سره ۷ عين رمون او عاتر او عاشان څلور
۸ ښهرونه دَدوي دَ کليو سره ۸ او ټول کلي چه دَدي ښهرونو په
چاپيره وُو بعلت بئير ته دَ جنوبي رامه دا ميراث دَ بني شمعون دَ
۹ دَوي دَ فرقي دَ خيلخانو په موافق ۹ دَ بني يهودا له حصي نه دَ
بني شمعون ميراث وه ځکه چه حصه دَ بني يهودا له هغوي نه
ډيره وه او بني شمعون ميراث واخست دَدوي دَ ميراث په
مينځ کښ
۱۰ ۱۰ او دريم هِسک دَ بني زبولون وخوت دَدوي دَ خيلخانو
۱۱ په موافق او دَدوي دَ ميراث حد تر ساريده پوري وه ۱۱ او حد
ئې مغرب طرف ته وخوت تر مرعله پوري او دباشت ته
ورسيد او هغه کندي ته چه دَ يقنيعم په مخ کښ ده ورسيد
۱۲ ۱۲ او له ساريد نه مشرق ته نمرخاته طرف ته وجاروت دَ کسلوت
۱۳ تابور تر حد پوري او دبره ته وخوت او يافيع ته وخوت ۱۳ او
له هغه نه نمرخاته طرف ته تير شه جت حافير ته عت قاصين
۱۴ ته او په رمون وخوت چه نيعه ته رسيږي ۱۴ او حد په قطب
طرف حناتون ته وګرځيده او وتل ئې دَ يفتحئيل په دري کښ
۱۵ وه ۱۵ او قطه او نهلال او شمرون او يدالاه او بيت لحم دولس
۱۶ ښهرونه دَدوي دَ کليو سره ۱۶ دا دي ميراث دَ بني زبولون دَدوي
دَ خيلخانو په موافق دا ښهرونه او کلي دَدوي
۱۷ ۱۷ او څلورم هِسک دَ يسّاکر دَپاره ووت دَ بني يسّاکر
۱۸ دَپاره دَدوي دَ خيلخانو په موافق ۱۸ او دَدوي حد يزرعيل او
۱۹ کسالوت او شونيم ته وه ۱۹ او حفاريم او شيون او اناحره
۲۰ ۲۱ ۲۰ او ربيت او قشون او آبص ۲۱ او رمت او عين جنيم او
۲۲ عين حده او بيت فصيص ۲۲ او حد تابور او شحصيمه او بيت شمش
ته ورسيده او دَدوي دَ حد وتل په يردن باندِ وُو شپاړس

ښهرونه دَ دوي دَ کليو سره ۲۳ دا دَ بني يساکار فرقي ميراث دَي ۲۳
دَ دوي دَ خيلخانو په موافق ښهرونه او کلي ئي
۲۴ او پنځم هِسک دَ بني آشير دَ فرقي دَپارَ ووت دَ دوي ۲۴
دَ خيلخانو په موافق ۲۵ او دَ هغه حد حلقت او حلي او باطن ۲۵
او اکشاف ۲۶ او الملک او عمعاد او مِشال او دَ مغرب په طرف ۲۶
کرمل ته او شيحور لبنه ته ورسيد ۲۷ او نمرخاته طرف ته بيت دجون ۲۷
ته وگرزيد او زبلون ته ورسيد او دَ يفتحيل په کندي کښ په
قطب طرف بيت عامق او نعيل ته او کابول ته په کينڼ لاس وخوت
۲۸ او عبرون او رحوب او حمون او قانه لوي صيدون ته ۲۹ او ۲۸ ۲۹
حد رامه ته او دَ صور قلعدار ښهر ته وگرزيده او حد تر
حوصه وگرزيد او وتل ئي په درياب وه دَ اکزيب په ملک کښ
۳۰ او عمه او افيق او رحوب دوويشت ښهرونه د دوي دَ کليو ۳۰
سره ۳۱ دا ميراث دَي دَ بني آشير دَ فرقي دَ دوي دَ خيلخانو په ۳۱
موافق دا ښهرونه دَ دوي دَ کليو سره
۳۲ شپږم هِسک دَ بني نفتالي دَپارَ ووت دَ بني نفتالي دَپارَ ۳۲
دَ دوي دَ خيلخانو په موافق ۳۳ او حد ئي له حالف دَ تعننيم له ۳۳
بلوط نه او ادامي ناقب او يبنئيل تر لقوم پوري او دَ دوي وتنه
په يردن وه ۳۴ او حد مغرب طرف ته وگرزيده ازنوت تابور ته ۳۴
او له هغه ځاي نه وخوت حقوق ته او په جنوب طرف زبلون
ته ورسيده او په مغرب طرف کښ آشير ته او دَ نمرخاته په
طرف يهودا ته په يردن ۳۵ او قلعدار ښهرونه صيديم وصير ۳۵
حمات رقت او کنارت وُو ۳۶ او ادامه او رامه او حاصور ۳۶
۳۷ او قادش او ادرعي او عين حاصور ۳۸ او يراؤن او مجدل ايل ۳۷ ۳۸
او حوريم او بيت عناه او بيت شمس نولس ښهرونه دَ دوي د
کليو سره ۳۹ دا دَ بني نفتالي دَ فرقي ميراث دَي دَ دوي دَ خيلخانو ۳۹

په موافق ښهرونو دَ دوي دَ کليو سره
۳۸ ۳۸ او اوم هِسک دَ بني دان دَپارَ دَ دوي دَ خيلخانو په
۴۱ موافق ووت ۴۱ او دَ هغوي دَ حد ميراث صرعه او اشتاؤل
۴۲ ۴۳ او عيرشمش ۴۲ او شعلبين او اِيّالون او يتله ۴۳ او ايلون
۴۴ ۴۵ او تمنه او عقرون ۴۴ او التقيه او جبثون او بعله ۴۵ او يهود
۴۶ او بني برق او جات رمون ۴۶ او مي يرقون او رقون سره هغه حد
۴۷ چه دَ يافو په برابر دَي ۴۷ او حد دَ بني جد له هغوي نه زيات
وخوت ځکه چه بني دان وختل او په لشم ئي جنګ وکړ او و ئي
نيوه او دَ توري په مخ ئي وواهه او په ميراث ئي واخست او په کښې
و اوسيدل او لشم ئي دان و باله دَ دوي دَ پلار دان دَ نوم
۴۸ په موافق ۴۸ دا ميراث دَ فرقي دَ بني دان دَي دَ دوي دَ خيلخانو په
موافق دا ښهرونه دَ دوي دَ کليو سره
۴۹ ۴۹ او چه دوي دَ زمکي تقسيم کول تمام دَ هغه دَ حد و نو
په شان وکړل نو بني اسرائيلو يشوع دَ نون ځوي ته په خپل
۵۰ منځ کښې ميراث ورکړ ۵۰ دَ خداوند په ويلو سره ئې ورکړل هغه
ښهر چه ئي وغوښت تمنت صرح په کوهستان کښې دَ افرايم
او ښهر ئي بنا کړ او په هغه کښې و اوسيدل
۵۱ ۵۱ دغه هغه ميراثونه دِي چه اليعاذر کوهن او يشوع
دَ نون ځوي او سردارانو دَ پلارونو دَ بني اسرائيلو دَ فرقو په
هِسک سره په ميراث وويشل دَ خداوند دَ وړاندِ په شيلوه
کښې دَ جماعت دَ مسکن په دروازه کښې او دَ زمکي دَ ويش کولو
نه وزګار شول ✦

# شلم باب

۱ او خداوند يشوع ته کلام وکړ و ئي ويل چه بني اسرائيل ته
۲ کلام وکړه ووايه ۲ تاسو دَ ځانونو دَپارَ هغه دَ پناه ښهرونه

مقرّر کړئ چه ما تاسو ته دَ موسیٰ په لاس وویل ۳ چه هلته ۳
خوني وتښتي چه څوک په خطا سره ووژني په ناپوهئ سره او
هغه به ستاسو دَپارَ دَخون له قصاصئ نه پناګاه وي ۴ او هم ۴
دَ دوي دَ ښهرونو نه يو ته به وتښتي او دَ ښهر دَ دروازي په
مدخل به ودريږي او هغه به خپلي خبري دَ هغه ښهر دَ
سپين ږيرو په غوږونو کښ ووائي او هغوي به ئي خپلو ښانونو
ته په ښهر کښ راجمع کړي او ځاي به ورته ورکړي او دَ هغو
په مينځ کښ به اوسي ۵ او که قصاصي دَ خون ورپسي وزغلي ۵
نو دوي به ئي دَده په لاس کښ ونه سپاري ځکه چه په
ناپوهئ سره ئي خپل ګوانډي ووژه چه په خوا ئي ورسره کينه
نه لرله ۶ او هغه په هغه ښهر کښ به اوسي تر هغه پوري ۶
چه دَ جماعت دَ وړاندِ دَ عدالت دَپارَ ودريږي دَ هغه سردار
کوهن تر مرګه پوري چه په هغو ورځو کښ به وي نو خوني به
وجار وزي او را به شي خپل ښهر ته خپل کور ته هغه ښهر
ته چه ورنه تښتيدلي وه ۷ او قادش په جليل دَ نفتالي په ۷
کوهستان کښ لئ مقدّس کړ او شکم ئي دَ افرايم په کوهستان
کښ او قريتِ اربع {هم دغه حبرون دَي} دَ يهودا په کوهستان
کښ ۸ او پوري غاړه دَ يردن دَ يريحا په مشرق طرف باصر په ۸
بيابان کښ په اوچت ميدان کښ دَ روبين له فرقي نه ئي ورکړ
او راموت په جلعاد کښ دَ جاد له فرقي نه او جولان په
باشان کښ دَ منسّي له فرقي نه ۹ دا مقرّر کړي شوي ښهرونه ۹
وُو دَ ټول بني‌اسرائيل دَپارَ او دَ بيګانه مسافر دَپارَ چه دَ
هغوي په مينځ کښ اوسيږي چه هلته هرڅوک چه څوک په
خطا سره ووژني ور وتښتي او دَ قصاصي دَ خون له لاس و
نه مري تر هغه پوري چه دَ جماعت دَ وړاندِ ودريږي *

# يوويشتم باب

۱ آ نو سرداران دَ پلارونو دَ ليويانو اليعاذر كوهن ته او يشوع
دَ نون خوي ته او دَ بني‌اسرائيل دَ فرقي دَ پلارونو سردارانو ته
۲ ورنزدي شول ۲ او دَ كنعان په زمكه په شيلوه كښ ئي ور ته
وويل په دي ويلو سره خداوند دَ موسیٰ له لاس نه وفرمايل
چه ښهرونو دَ آرام كولو دَ پارَ مونږ ته راكړي شي سره دَ چراګاهو
۳ ځمونږ دَ مويشيانو دَ پارَ ۳ او بني‌اسرائيل دَ خپل ميراث نه
ليويانو ته وركړل دا ښهرونه دَ دوي دَ چراګاهو سره دَ خداوند
دَ ويلو په موافق
۴ ۴ او هِسك دَ قوهاتيانو دَ خيلخانو دَ پارَ ووت او بني‌هارون
كوهن ته چه له ليويانو وه دَ يهودا له فرقي نه او دَ شمعونيانو
له فرقي نه او دَ بنجمين له فرقي نه ديارلس ښهرونه په هِسك
سره وُو
۵ ۵ او دَ بني‌قوهات پاتي شويو دَ افرايم دَ فرقي له خيلخانو
نه او دَ دان له فرقي نه او دَ نيمي فرقي دَ منسّي نه په هِسك
سره لَس ښهرونه وُو
۶ ۶ او بني‌جيرشون دَ يساكار دَ فرقي له خيلخانو نه او دَ
آشر له فرقي نه او دَ نفتالي له فرقي نه او دَ منسّي له نيمي
فرقي نه په باشان كښ ديارلس ښهرونه په هِسك سره وُو
۷ ۷ بني‌مراري ته دَ هغوي دَ خيلخانو په موافق دَ راؤبين
له فرقي نه او دَ جد له فرقي نه او دَ زبولون له فرقي نه دولس
ښهرونه وُو
۸ ۸ او بني‌اسرائيل دا ښهرونه ليويانو نه په هِسك وركول
دَ هغو دَ چراګاهو سره لكه چه خداوند دَ موسیٰ په لاس وفرمايل

۹ ۹ او دَ بنيِ یهودا له فرقي نه او دَ بني شمعون له فرقي نه دا ښهرونه
۱۰ چه په نوُم سره نوُمړي کيږي ۱۰ او دَ بني هارون دَپارَ دوي وشول
دَ قوهاتیانو دَ خیلخانو دَپارَ چه بنيِ لاويِ وه ځکه چه اوّل حِسک
۱۱ دَ هغوي دَپارَ وه ۱۱ او هغوي ته ئې ورکړل قریت اربع آبيِ عناق
{هم دغه حبرون دَيِ} دَ یهودا په کوهستان او دَ هغه چراګاه
۱۲ چه چاپیر ئې دِي ۱۲ لیکن پټيِ دَ ښهر او دَده کلِي کالب دَ یفُنَّه
ځوي ته دَدوي دَ ملکیت دَپارَ ئې ورکړل
۱۳ ۱۳ او بنيِ هارون کوهین ته ئې حبرون ورکړ دَدوي دَ چراګاهو
سره هغه ښهر چه دَ خوني دَپارَ دَ پناه ښهر وه او لِبناه او
۱۴ دَ هغه دَ چراګاهو سره ۱۴ او یتّیر او چراګاه ئې او اشتموع او
۱۵ ۱۶ چراګاه ئې ۱۵ او حولون او چراګاه ئې او دَبیر او چراګاه ئې ۱۶ او
عِیَن او چراګاه ئې او یطاه او چراګاه ئې او بیت شمس او چراګاه
۱۷ ئې نهه ښهرونه دَ هغو دَدوو فرقو نه ۱۷ او دَ بنجمین له فرقي نه
۱۸ جبعون او چراګاه ئې جباع او چراګاه ئې ۱۸ عنتوت او چراګاه ئې او
۱۹ علمون او چراګاه ئې ځلور ښهرونه ۱۹ ټول ښهرونه دَ بنيِ هارون
کوهنانو دَپارلس ښهرونه وُو دَدوي دَ چراګاهو سره
۲۰ ۲۰ او خیلخانيِ دَ بنيِ قوهات لیویان یعني پاتي شوِي دَ قوهات
۲۱ او ښهرونه ئې په حِسک سره ووېشل دَ افرایم له فرقي نه ۲۱ او
هغوي ته ئې ښهرپناه دَ خوني شکم ورکړ دَ هغه دَ چراګاه سره دَ
۲۲ افرایم په کوهستان کښې او جزر او چراګاه ئې ۲۲ او قبصایم او
۲۳ چراګاه ئې او بیت حورون او چراګاه ئې ځلور ۲۳ او دَ دان له فرقي
۲۴ نه التقي او چراګاه ئې جبّتون او چراګاه ئې ۲۴ او عایلون او چراګاه
۲۵ ئې جات رِمون او چراګاه ئې ځلور ښهرونه ۲۵ او دَ نیمي فرقي دَ منسّيِ
نه تعناک او چراګاه ئې او جات رمّون او چراګاه ئې دوه ښهرونه
۲۶ ۲۶ ټول ښهرونه دَ پاتي بني قوهات دَ خیلخانو لس وو دَ دوي له

چراګاهو سره
۲۷ ۲۷ او بني‌جيرشون ته دَ ليويانو دَ خيلخانو دَ منسي له نيمي
فرقي نه شهرپناه دَ خوني دَپارَ جولان په باشان کښ او چراګاه ئي
۲۸ او بعشتراه او چراګاه ئي دوه ښهرونه ۲۸ او دَ يسّاکار له فرقي نه
۲۹ قشيون او چراګاه ئي دَبَرة او چراګاه ئي ۲۹ يرموت او چراګاه ئي
۳۰ عين‌جنيم او چراګاه ئي څلور ښهرونه ۳۰ او دَ آشر له فرقي نه
۳۱ مشال او چراګاه ئي عبدون او چراګاه ئي ۳۱ حلقه او چراګاه ئي
۳۲ رحوب او چراګاه ئي څلور ښهرونه ۳۲ او دَ نفتالي له فرقي نه
ښهرپناه دَ خوني قادش په جليل کښ او چراګاه ئي او حموت دور
۳۳ او چراګاه ئي او قرتان او چراګاه ئي دري ښهرونه ۳۳ ټول ښهرونه
دَ جيرشونيانو دَ دوي دَ خيلخانو په موافق ديارلس ښهرونه وُو
او چراګاه ئي
۳۴ ۳۴ او دَ بني‌مراري و خيلخانو ته . پاتي شوي دَ ليويانو دَ
۳۵ زبولون له فرقي نه يقنعام او چراګاه ئي قرتاه او چراګاه ئي ۳۵ دمنا
۳۶ او چراګاه ئي نهلال او چراګاه ئي څلور ښهرونه ۳۶ او دَ روبين
۳۷ له فرقي نه باصر او چراګاه ئي او يهصه او چراګاه ئي ۳۷ قديموت
۳۸ او چراګاه ئي او ميفعه او چراګاه ئي څلور ښهرونه ۳۸ او دَ جد
له فرقي نه ښهرپناه دَ خوني راموت په جلعاد کښ او چراګاه ئي او
۳۹ محنايم او چراګاه ئي ۳۹ حشبون او چراګاه ئي يعزير او چراګاه ئي
۴۰ ټول ښهرونه څلور ۴۰ ټول ښهرونه دَ بني‌مراري دَ دوي دَ خيلخانو
په موافق پاتي شوي دَ خيلخانو دَ ليويانو او هسک ئي دولس ښهرونه
وو
۴۱ ۴۱ ټول ښهرونه دَ ليويانو دَ بني‌اسرائيل دَ ملکيت په منځ
۴۲ کښ اته څلويښت وُو دَ دوي دَ څراګاهو سره ۴۲ دا ښهرونه
يو يو ښهر او چراګاه ئي دَ دوي نه چاپيره هسي له دي ټولو

۴۳ ښهرونو سره وُو ۴۳ او خداوند اسرائیل ته ټوله هغه
زمکه ورکړه چه په وړکولو ئې دَدوي پلارونو سره قسم
وخوړ او دوي دَ هغې وارثان شول او په کښې اوسیدل -
۴۴ ۴۴ او خداوند ورته آرام ورکړ چارچاپیره په موافق دَ ټولو
چه دَ هغوي له پلارونو سره ئې قسم وخوړ او دَ هغوي له
ټولو دُښمنانو نه یو سړي دَدوي په مخ کښې ونه درېده
۴۵ خداوند ئې ټول دُښمنان دَدوي په لاس کښې ورکړل ۴۵ له
هغو ټولو ښو خبرو نه هیڅ خبره چه خداوند دَ اسرائیل
ښې ته وویله پرې نه وتله هغه ټوله وشوله ٭

# دوه ویشتم باب

۱ ۱ او یشوع روبنیان او جدیان او نیمه فرقه دَ منسّي ئې را
۲ وبلل ۲ او ورته ئې وویل تاسو هغه ټول چه موسیٰ بنده دَ
خداوند تاسو ته وفرمایل ساتلي دِي او ځما قول مو آوریدلي
۳ دَي په هغو ټولو کښې چه ما تاسو ته فرمایلي دِي ۳ تاسو خپل
ورونړه پرېښودلي نه دِي له دغو ډیرو ورځو نه تر نن ورځې پورې
۴ لیکن دَ خداوند خپل الله فرمان مو ساتلي دي ۴ او اوس
خداوند ستاسو الله ستاسو ورونړو ته آرام ورکړي دَي
لکه چه ده هغوي ته کلام وکړ او اوس تاسو وګرزئ او خپلو
کیږدو ته ووزئ دَ خپل ملکیت زمکي ته چه موسیٰ بنده دَ خداوند
۵ په پوري غاړه دَ یردن تاسو ته درکړه ۵ تش ډیره ساتنه کوئ
چه عمل وکړئ په هغه فرمان او په هغه تورِیت چه موسیٰ بنده
دَ خداوند تاسو ته وفرمایل چه تاسو دَ خداوند الله خپل
سره محبّت کوئ چه دَ هغه په ټولي لاري ځئ او چه دَده فرمانونه
ساتئ او چه پرې ونښلئ او چه دَده عبادت کوئ په خپلو ټولو

۶ ذړونو سره او په خپلو ټولو څاڅونو سره ۶ نو یشوع ورته برکت
ورکړ او رخصت ئې کړل او دوی خپلو کیږدیو ته لاړل
۷ ۷ او د منسّي نیمي فرقې ته موسیٰ په باشان کښ ورکړ لیکن بلي نیمي
ته یشوع د خپلو ورونړو په منځ کښ په پوري غاړه د یردن مغرب
طرف ته ورکړ او زیات له دي هرکله چه یشوع هغوي خپلو
۸ کیږدیو ته رخصت کړل نو برکت ئې ورکړ ۸ او په دي ویلو سره ئې
ورته وویل له ډیرو مالونو سره خپلو کیږدو ته وجارووزئ او
له ډیرو مویشیانو سره او له سپینو زرو او له سرو زرو او له
زیړو سره او له اوسپنو سره او له ډیرو زیاتو جامو سره د
خپلو دښمنانو لوټ د خپلو ورونړو سره ووېشئ
۹ ۹ او بني روبین او بني جد او نیمه فرقه د منسّي وجاروتلل
او تلل د بني اسرائیل له شیلوه نه چه د کنعان په زمکه کښ
دَي تا چه د جلعاد زمکي ته ورشي د خپلي قبضي زمکي ته چه
پر ئې قبضه کړي وه د خداوند د ویلو په موافق د موسیٰ له
۱۰ لاسَ ۱۰ او هرکله چه دوي د یردن په اطرافو کښ راغلل چه د
کنعان په زمکه کښ دَي نو بني روبین او بني جد او نیمي فرقي د
منسّي هلته یوه مذبح بنا کړله په یردن باندِ لویه مذبح په لیدو
۱۱ کښ ۱۱ او بني اسرائیلو دا خبره واوریدله چه گوره بني روبین او
بني جد او نیمي فرقي د منسّي د کنعان د زمکي په مخامخ یوه مذبحه
بنا کړي دَه د یردن په اطرافو کښ په هغه غاړه چه د بني اسرائیلو
۱۲ دَي ۱۲ او هرکله چه بني اسرائیلو دا واوریدل نو جماعت د بني اسرائیلو
په شیلوه کښ راجمع شه چه په هغوي جنګ ته وخیژي
۱۳ ۱۳ او بني اسرائیلو بني روبین او بني جد او نیمي فرقي د منسّي
ته ورواستول د جلعاد زمکي ته فنیحاس د الیعاذر کوهین
۱۴ څوي ۱۴ او له هغه سره لَس رئیسان یو رئیس د پلار له کور

نه دَ اسرائیل دَ هري يوي فرقي دَپارَ او هر سړی دَدوي دَ پلارونو
۱۵ دَكور سر وه دَ اسرائیل دَ زرګونو په مینځ کښې ۱۵ او هغوي بني‌روبین
او بني‌جد او نيمي فرقي دَ منسّي ته دَ جلعاد زمکي ته راغلل او
۱۶ ورسره ئي خبري وکړي . و ئي ويل ۱۶ ټول جماعت دَ خداوند داسي
وائي دا موخه بي‌وفائي کړي دَه چه تاسي دَ اسرائيل دَ الله سره
دکړه چه نن ورځ دَ خداوند له پيرويْ نه وجاروتلئ تاسو دَ
خپلو ځانونو دَپارَ يوه مذبح بنا کړي دَه چه نن ورځ له خداوند
۱۷ نه ياغيان شئ ۱۷ مونږ ته هغه بدي دَ پيغور لږ وه څه ؟ چه مونږ
تر نن ورځي پوري خپل ځانونه پاک کړي نه دي او دَ خداوند په
۱۸ جماعت وبا وه ۱۸ او تاسو نن ورځ دَ خداوند له پيرويْ نه جاروتلي
يئ څه ؟ او داسي به وشي هركله چه تاسي نن ورځ له خداوند
ياغيان شوئ نو هغه به صبا به ټول جماعت دَ اسرائيل په غضب
۱۹ شي ۱۹ او اګر که ستا دَ قبضي زمکه ناپاکه وي نو تاسو دَ خداوند
دَ قبضي زمکي ته پوري وزئ چه هلته دَ خداوند مسکن ساکن دي
او ځمونږ په منځ کښې قبضه واخلئ ليکن دَ خداوند په خلاف
مه ياغيان کيږئ او نه له مونږ نه ياغيان شئ چه تاسو دَ خپلو
ځانونو دَپارَ يوه مذبح بنا کوئ بي له مذبح دَ خداوند ځمونږ دَ الله
۲۰ ۲۰ ولي عاکان دَ زارح ځوي په حرم کښې بيوفائي ونه کړه څه ؟
او په ټول جماعت دَ اسرائيل غضب وشه او هغه سړي يواځي په
خپلي بدئ کښې په ځانکندن شه څه ؟
۲۱ ۲۱ او بني‌روبین او بني‌جد او نيمي فرقي دَ منسّي جواب ورکړ او
۲۲ دَ اسرائيل دَ زرګونو سردارانو ته ئي وويل ۲۲ خداوند هم هغه
دَ الٰهانو الله خداوند دَ الٰهانو الله هم هغه پوهيږي او اسرائيل
به هم پوه شي چه که په ياغيتوب يا که په بي‌وفائي وي دَ خداوند
۲۳ په خلاف {نو ته مونن ورځ مه خلاصوه} ۲۳ چه مونږ دَ خپلو

ځانونو دَپارَ یوه مذبح بنا کُوو تاچه دَ خداوند له پیروئ نه و
جاروزو او یا سوختني قرباني یا دَ هدیي قربانئ ورباندِ وکړو او یا دَ
۲۴ سلامتئ ذبحي ورباندِ وکړو نو خداوند دِ پخپله تفحص وکړي ۲۴ او که
نه دَدي خبري له ویري نه مونږ دا کار وکړو دَدي ویلو په سبب چه
په صبا کښ به ستا ځامن ځمونږ ځامنو ته ووائي په دي ویلو سره
۲۵ چه ستاسو دَ اسرائیل دَ خداوند الله سره څه دِي؟ او خداوند
یوحد ځمونږ په مینځ کښ او ستاسو په مینځ کښ اي بني روبینَ او
اي بني جدَ و باخبنه چه هغه یردن دَي تاسو ته په خداوند کښ
حصه نشته او ستاسي هلکان به ځمونږ هلکان رد کړي څو چه دَ
۲۶ خداوند ویره و نه کړي ۲۶ او مونږ ووئیل مونږ تیاري کُوو دَ خپل
ځانونو دَپارَ چه یوه مذبح بنا کړو نه د سیځونکي قرباني دپارَ او نه دَ
۲۷ ذبح کولو دَپارَ ۲۷ بلکه چه هغه ځمونږ په مینځ کښ او ستاسو په
مینځ کښ او ځمونږ دَ پیړیو په مینځ کښ چه ځمونږ ورستني به راشي
نو شاهد به شي چه مونږ دَ خداوند عبادت وکړو دَده دَ وړاندِ
ځمونږ په سیځونکو قربانیو سره او ځمونږ له ذبحو سره او ځمونږ دَ
سلامتئ دَ قربانیو سره تاچه ستا هلکان په آینده کښ ځمونږ هلکانو
۲۸ ته و نه وائي چه ستاسو په خداوند کښ حصه نشته ۲۸ او مونږ
ووئیل چه داسي به وِشي چه هرکله چه هغوي مونږ ته او ځمونږ پیړیو
ته په آینده کښ داسي وائي نو مونږ به ووایُو چه گوره هغه نمونه
دَ خداوند دَ مذبح چه ځمونږ پلرونو جوړه کړه نه دَ سیځونکي قربانئ
دَپارَ او نه دَ ذبح دَپارَ بلکه شاهده دَه ستاسو او ځمونږ په مینځ
۲۹ کښ ۲۹ هسي دِ نه وِي چه له هغه نه مونږ دَ خداوند په خلاف
یاغیان شُو او نن ورځ دَ خداوند له پیروئ نه پستنه وجاروزو چه
مونږ مذبح بنا کړو دَ سیځونکي قربانئ دَپارَ او دَ هدیي دَپارَ بي دَ
هغي مذبح دَ خداوند ځمونږ دَ الله چه دَده دَ مسکن دَ وړاندِ ده

٣٠ ٣٠ او چه فنیحاس کوهین او رئیسانو دَ جماعت او سردارانو
دَ زرگونو دَ اسرائیل چه ورسره وُو هغه خبري واوریدلي چه
بني روبین او بني جد او بني منسّي وویلي نو دَ هغو په سترگو کښ
٣١ خوښي شولي ٣١ او فینحاس دَ الیعاذر ځوي هغه کوهین بني روبین
ته او بني جد ته او بني منسّي ته وویل چه نن ورځ مونږ وپوهیږو
چه خداوند ځمونږ په مینځ کښ دَي په دي چه تاسو په بیوفائي
سره په خداوند دا بي وفائي و نه کړه اوس تاسو بني اسرائیل دَ
٣٢ خداوند له لاسه خلاص کړي دِي ٣٢ او فینحاس دَ الیعاذر ځوي
هغه کوهین او رئیسان دَ بني روبین او دَ بني جد دَ جلعاد له
زمکي نه وجاروتل دَ کنعان زمکي بني اسرائیل ته او په هغوي خبري
٣٣ وگرزولي ٣٣ او هغه خبره دَ بني اسرائیل په سترگو کښ ښه ښکاره
شوه او بني اسرائیل دَ الله حمد ووایه او بیا ئي و نه ویل چه په
دوي باندِ دَ جنگ دَپارَ وخیژو دَ هغي زمکي دَ ویران کولو دَپارَ چه
٣٤ بني روبین او بني جد په کښ اوسیدل ٣٤ او بني روبین او بني جد
په هغه مذبح عید نوم کیښود ځکه چه دغه ځمونږ په مینځ کښ
شاهد ده چه یهوه هغه الله دَي ؞

# درویشتم باب

١ ١ او پس له ډیرو ورځو چه خداوند اسرائیل ته دَ دوي دَ ټولو
چاپیره دُښمنانو نه آرام ورکړ او یشوع سپین ږیري او دَ ډیرو
٢ ورځو وه ٢ نو یشوع ټول اسرائیل راوبلل دَ هغه سپین ږیري او دَ
هغه سرداران او دَ هغه قاضیان او دَ هغه کاتبان او ورته ئي
٣ وویل زه سپین ږیري یم او دَ ډیرو ورځو یم ٣ او تاسو لیدلي دِي
هغه ټول څه چه خداوند ستاسو الله له دغو ټولو قومونو سره
ستاسو دَپارَ کړي دِي ځکه چه خداوند ستاسو الله هم هغه

۴ دي چه ستاسو دپاره يې جنګ کړي دي ۴ ګورئ ما تاسو ته دا پاتې
شوي قومونو په حِصه سره وويشل چه ستاسو د فرقو دپاره
وراثت شي له يردن نه او ټول قومونه چه ما پريکړي دي تر لوي
۵ درياب پورې د نمر د پريوتلو په طرف ۵ او خداوند ستاسو
الله هغه ستاسو له مخ نه به دوي ټيل وهي او ستاسو له
مخونو نه به يې وشړي نو تاسو به د هغوي د زمکې وارثان شئ
۶ لکه چه خداوند ستاسو الله تاسو ته وويل ۶ له دې سببه تاسو
ډير تکړه شئ چه تاسو هغه ټول چه د موسیٰ د تورات په
صحيفو کښ ليکلي دي ونيسئ او په کښ عمل وکړئ تا چه
۷ له هغه نه يا په ښي يا په کينړ طرف ونه ګرزئ ۷ چه تاسو
دې پاتې شوو قومونو ته ورننه نه وزئ او نه د دوي د خدايانو
په نوم سره ذکر وکړئ يا ئې قسم وخورئ او نه د هغو عبادت
۸ وکړئ او نه هغوي ته سجده وکړئ ۸ ليکن په خداوند خپل
الله پورې ونښلئ لکه چه تاسو تر دې ورځې پورې کړي دي -
۹ ۹ ځکه چه خداوند ستاسو له مخونو نه لوي او قوي قومونه شړلي
دي او تاسو چه يئ يو سړي ستاسو په مخونو کښ تر دې ورځې
۱۰ پورې و نه دريدلي شه ۱۰ يو سړي له تاسو نه به زر و تښتوي
ځکه چه خداوند ستاسو الله هغه دي چه ستاسو دپاره جنګ
۱۱ کوي لکه چه ده تاسو ته وويل ۱۱ نو د خپلو ځانونو ډيره ساتنه
۱۲ کوئ چه د خپل خداوند الله سره محبت وکړئ ۱۲ هسي نه چه
په جاروتلو سره وجاروزئ او ددې قومونو له باقيو سره ونښلئ
هم له هغو سره چه ستاسو په مينځ کښ پاتې دي او ورسره
۱۳ خويښي وکړئ او ورننه وزئ او هغوي تاسو ته ۱۳ په يقين سره
پوهيږئ چه خداوند ستاسو الله به زيات دغه قومونه ستاسو
له مخونو نه ونه شړي او هغوي به تاسو ته جال او دام وي او

ستاسو په ډډو کښې به کوړې او ستاسو په سترګو کښې به اغزي
وِي تر هغه پورې چه له دې ښې زمکې نه چه خداوند ستاسو
۱۴ ته درکړې ده برباد شئ ۱۴ او ګوره زه نن ورځ د ټولې زمکې په
لارې تلونکي يم او تاسو په خپلو ټولو زړونو کښې او په خپلو
ټولو ځانونو کښې و پوهيږئ چه يو کلام پرېوتلې نه دې له هغو
ټولو ښو کلامونو نه چه خداوند ستاسو الله تاسو ته کلام وکړ
۱۵ ټول تاسو ته راغلي يو کلام له هغوي نه پرېوتلې نه دې ۱۵ او داسې
به وشي لکه چه په تاسو هغه ټول ښه کلام چه خداوند ستاسو
الله تاسو ته کلام وکړ راغي هسې به خداوند په تاسو هغه ټول
شر راوړي چه تاسو له دې ښې زمکې نه برباد کړي چه تاسو ته
۱۶ خداوند ستاسي الله درکړي ده ۱۶ هرکله چه تاسو هغه عهد د
خداوند ستاسو د الله مات کړئ چه تاسو ته ئې وفرمائل او
لاړ شئ او د نورو خدايانو عبادت وکړئ او ورته سجده وکړئ نو غضب د خداوند
به په تاسو بل شي او له هغه ښې زمکې نه به په بېړه
سره برباد شئ چه هغه تاسو ته درکړي ده +

## څلورويشتم باب

۱ ۱ او يشوع ټولې فرقې د اسرائيل شکم ته راجمع کړې او د اسرائيل
سپين ږيري او د هغه سرداران او د هغه قاضيان او د هغه
کاتبان ئې راوبلل او دوي د الله د وړاندې ځانونه حاضر کړل
۲ ۲ او يشوع ټول امت ته ووئيل خداوند د اسرائيل الله داسې
وائي ستاسو پلارونو له وړاندې وقتونو نه د سيند په پورې
طرف اوسېدل تارح پلار د ابراهام او پلار د ناحور او هغوي
۳ د نورو خدايانو عبادت کاوه ۳ او ما ستاسو پلار ابراهام له
پورې طرف نه د سيند ونيوه او هغه مې ټولې زمکې د کنعان

۴ ته بوت او دَده اولاد ئې ډير کړل او اسحاق ئې ورکړه او اسحاق ته ئې
يعقوب او عيسو ورکړل او ما عيسو ته دَ سعير غر ورکړ چه په ميراث
۵ ئې واخلي او يعقوب او دَده ځامن مصر ته کوز شول ۵ او ما واستول
موسیٰ او هارون او مصر ئې وواهه دَ هغه په موافق چه دَده په مينځ
۶ کښې ما وکړه او پس له هغې ما تاسو راويستلئ ۶ او ما ستاسو پلارونه
له مصر راويستل او تاسو درياب ته راغلئ او مصريان ستاسو په
۷ پلارونو پسې شول له گاډيو او له سوارو سره تر بحر قلزم پورې ۷ او چه
دوي خداوند ته چغې کولې نو تياره ئې دَ تاسو په مينځ کښې او دَ مصريانو
په مينځ کښې کيښوده او په هغوي ئې هغه درياب راووست او پټ
ئې کړل او ستاسو سترگې هغه چه ما په مصر کښې وکړل وليدل او
۸ تاسو ډيرې ورځې په بيابان کښې اوسيدئ ۸ او تاسو ئې دَ اموريانو په زمکه
کښې راوستلئ چه دَ يردن پورې غاړه اوسيدل او دوي له تاسو سره
جنگ وکړ او هغوي مې ستاسو په لاس کښې درکړل او تاسو دَ هغوي
زمکه په قبضه کښې کړه او ستاسو دَ وړاندې ئې هغوي برباد کړل -
۹ ۹ نو بلق دَ صفور ځوي دَ مواب بادشاه پورته شه او دَ اسرائيل سره
ئې جنگ وکړ او هغه واستول او بلعام دَ بعور ځوي ئې وباله ستاسو دَ
۱۰ لعنت کولو دَپاره ۱۰ ليکن ما خوښه نه شوه چه دَ بلعام واورم او په برکت
کولو سره ئې تاسو ته برکت درکړ او تاسو ئې دَ هغه له لاس خلاص
۱۱ کړئ ۱۱ او تاسو په يردن پورې وتئ او يريحا ته راغلئ او دَ يريحا خاوندانو
تاسو سره جنگ وکړ يعني اموريانو او فرزيانو او کنعانيانو او حتيانو او
۱۲ جرجاشيانو او حويانو او يبوسيانو او هغوي مې ستاسو په لاس کښې درکړل ۱۲ او
ستاسو په مخ کښې مې هغه ډنبرې واستولې چه هغوي ئې ستاسو له
مخونو نه وشړل دوه بادشاهان دَ اموريانو نه ستاسو په توره او
۱۳ نه ستاسو په ليندۍ سره ۱۳ او ما تاسو ته زمکه درکړه چه نه په کښې
تاسو خوارۍ کړې دَه او نه ئې ښهرونه تاسو بنا کړل او تاسو په کښې

اوسئِ او له انگورو او له زيتونَ چه تاسو نه دي لگولي خورئ ۱۴ او ۱۴
اوس دَ خداوند ويره وکړئِ او دَ هغه عبادت وکړئِ په کامليت او په
رښتيا کښ او هغه خدايان چه ستاسو پلارونو ئي عبادت کاوه په پوري
غاړه دَ سيند او په مصر کښ لري ئي کړئِ او دَ خداوند عبادت
کوئِ ۱۵ او که ستاسو په سترگو کښ دَ خداوند عبادت کول بد معلوميږي ۱۵
نو نن ورځ تاسو غوره کړئِ چه دَ چا عبادت به کوئِ يا دَ هغه خدايانو
چه ستاسو پلارونو ئي عبادت کاوه چه په پوري غاړه دَ سيند وو يا
دَ اموريانو دَ خدايانو چه تاسو دَ دوي په زمکه کښ اوسئِ ليکن زه چه
يم او زما کور چه دَي دَ خداوند عبادت به وکړو ۱۶ او اُمّت ځواب ورکړ ۱۶
وئي ويل هسي دِ نه وِي چه مونږ خداوند ترک کړو چه دَ نورو خدايانو
عبادت وکړو ۱۷ ځکه چه خداوند زمونږ الله هغه دَي چه مونږ ئي او ۱۷
زمونږ پلارونه ئي دَ مصر له زمکي نه را وخيژولو دَ غلاميِ له کور نه
او چه زمونږ دَ سترگو دَ وړاندِ ئي هغه لوي نښي وکړلي او چه مونږ ئي
په هغه ټولي لاري چه په کښ تللو و ئي ساتلو او دَ هغو ټولو خلقو په
مينځ کښ چه مونږ په کښ وگرزيدلو ۱۸ او خداوند هغه ټول خلق زمونږ ۱۸
له مخونو نه وشړل هم هغه اموريان چه په زمکه کښ اوسيدل هم
په دي سبب مونږ به دَ خداوند عبادت وکړُو ځکه چه هغه زمونږ الله دَي
۱۹ او يشوع اُمّت ته وويل تاسو نه توانيږئِ چه دَ خداوند عبادت وکړئِ ۱۹
ځکه چه هغه قُدّوس الله دَي هغه غيور الله دَي ستاسو تقصيرونه
او ستاسي خطا به معاف نه کړِي ۲۰ که تاسو خداوند ترک کړئِ او دَ بيگانه ۲۰
خدايانو عبادت وکړئِ نو هغه به وگرزي او بلا به په تاسو راولي او تاسو
به فنا کړِي پس له هغه چه له تاسو سره ئي ښيگړي کړي دِي ۲۱ او اُمّت ۲۱
يشوع ته وويل چه نه ځکه چه مونږ به دَ خداوند عبادت وکړُو ۲۲ او ۲۲
يشوع اُمّت ته وويل چه تاسو په خپلو ځانونو باندِ شاهدان يئِ چه تاسو
دَ خپلو ځانونو دَ پارَ خداوند غوره کړِي دَي چه عبادت ئي وکړئِ او دوي

۲۳ وویل چه مونږ شاهدان یو ۲۳ نو اوس لرې کړئ هغه بیګانه خدایان چه
ستاسو په مینځ کښ دي او خپل زړونه دَ خداوند الله دَ اسرائیل په لورې
۲۴ مایل کړئ ۲۴ او اُمت یشوع ته وویل چه دَ خداوند دَ خپل الله عبادت
۲۵ به وکړو او دَده قول به ومنو ۲۵ نو یشوع هغه ورځ له اُمّت سره یو عهد
وتاړه او حکم او قانون ئې په شکم کښ کیښودل
۲۶ ۲۶ او دَ تورنت په صحیفې کښ یشوع دغه ټولې خبرې ولیکلې او یو لوې
کاڼې ئې واخست او هلته ئې تر هغه بلوط دَ لاندې ودراوه چه دَ خداوند
۲۷ مَقدِس څنګه وه ۲۷ او یشوع ټولو خلقو ته وویل ګوره دا کاڼې به په
مونږ شاهد وي ځکه چه هغه ټولې خبرې دَ خداوند چه څمونږ سره ئې
کلام وکړ ده آوریدلې دي نو هغه به په تاسو شاهد وي هسې نه چه
۲۸ تاسو دَ خپل خداوند الله نه انکار وکړئ ۲۸ او یشوع اُمّت له
رخصت ورکړ هر سړې خپل ملک ته لاړ
۲۹ ۲۹ او پس دَدې خبرې داسې وشوه چه یشوع دَ نون ځوې دَ خداوند
۳۰ بنده مړ شه او هغه دَ یو سل لسو کالو وه ۳۰ او دَ هغه دَ میراث په
حد کښ په تمنت صرح چه دَ افرائیم په کوهستان کښ دَي ښخ کړ دَ جعس
۳۱ غره په قطب طرف ۳۱ او اسرائیل دَ خداوند عبادت وکړ ټولې ورځې
دَ یشوع او ټولې ورځې دَ سپین ږیرو چه دَدوي ورځې پس له یشوع اوږدې
شوې او چه دوي دَ خداوند ټول کارونه پیژندلي وُو چه ده دَ اسرائیل
۳۲ دَپاره کړي وُو ۳۲ او هډوکي دَ یوسف چه له مصر نه بني اسرائیلو
پورته کړل په شکم کښ ئې ښخ کړل په هغې حصې دَ ورشو چه
یعقوب له بني حمور پلار دَ شکم نه وپیروده په یو سل قسیطو سره
۳۳ او دغه دَ بني یوسف ملکیت شه ۳۳ او الیعاذر دَ هارون ځوې مړ
شه او دوي هغه په جبعت دَ فینحاس دَ ځوي خپل کښ چه ده
ته دَ افرائیم په کوهستان کښ ورکړې شوې وه ښخ کړ *

# قاضيان

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو کښ ترجمه کړي شه

الله

١٨٩٥

T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد آلرحمان او غلام جلاني كاتب

در مطبع برتش و فارن بيبل سوسيتي لندن

# JUDGES, IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

1895.

# کتاب دَ قاضیانو

## اول باب

۱ آ او دَ یشوع دَ مرګ پس داسي وشول چه بني‌اسرائیل خداوند
تہ سوال وکړ و لي ویل چه څوک دَي څمونږ دَپارَ چه اول کنعانیانو
۲ تہ دَ جنګ دَپارَ وخیژي ۲ نو خداوند وویل چه یهودا به وخیژي
۳ ګوره ما هغه زمکه دَده په لاس کښي ورکړي دَه ۳ نو یهودا شمعون
وَرور خپل ته وِو چه ته څما په هِسک کښي راسره وخیژه چه
له کنعانیانو سره جنګ وکړو نو زه به هم ستا په هِسک کښي
۴ در سره وخیژم نو شمعون ورسره لاړ شه ۴ نو یهودا وخوت او
خداوند کنعانیان او فرزّیان دَدوي په لاس کښي ورکړل نو له
۵ هغوي نه لي په بزق کښي لس زره سړي ووهل ۵ او دوي ادوني‌بزق
په بزق کښي وموند نو جنګ لي ورسره وکړاو کنعانیان او فرزیان لي ووهل
۶ ۶ نو ادوني‌بزق وتښتیده نو دوي ورپسي شول او و لي نیوه او دوي
۷ لي دَ دوارو لاسونو او دَ پښو کتبي ګوتي پریکړلي ۷ نو ادوني‌بزق وویل
چه اویا بادشاهان دَ لاسونو او دَ پښو کتبي ګوتي پریکړي شِوي څما
دَ خوانچي دَ لاندِ به لي ټکري ټولولي لکه چه ما وکړل هسي الله
بدله راکړ او اورشلیم ته لي راوست او هلته مړ شه
۸ ۸ او دَ یهودا زامن په اورشلیم وجنګیدل او وا لي خست او
۹ دَ توُري په مخ لي وواهه او ښهر لي په اور وسوزاوه ۹ او پس له
دغه دَ یهودا زامن دَپارَ دَ جنګ دَ کنعانیانو چه په غره کښي او
۱۰ په جنوب او په کوز میدان کښي اوسیدل ۱۰ او یهودا په هغو
کنعانیانو چه په حبرون کښي اوسِي ورغيَ او وراندِ دَ حبرون نوم
۱۱ قریت اربع وه او شیشاي او احیمان او تلمايِ ووهل ۱۱ او له

هغه ځاي نه دَ دبير په اوسيدونکو ورغي او وړاند دَ دبير نوم
۱۲ قريت سفر وه ۱۲ نو کالب و ويل هغه چه قريت سفر وُوهِي او
۱۳ وا ئې خلي نو زه به خپله لور عکسه په نکاح ورکړم ۱۳ نو هغه
غتنيئيل زوي دَ قناز ورور دَ کالب چه ورنه ورو کي وه واخست
۱۴ نو ده عکسه لور خپله په نکاح ورکړه ۱۴ او داسي وشول هرکله چه
دي ورننوته نو دا ئې ولمسوله چه له خپل پلار نه پټي وغواړي نو
۱۵ دا له خپل خره نه کوز شوه نو کالب ورته وُوِ چه څه غواړي ۱۵ نو
ورته ئې وويل چه ماته برکت راکړه هرکله چه ما ته دِ دَ جنوب زمکه
راکړه نو دَ اوبو چيني هم راکړه نو کالب دي ته پاسنئ چيني او کوزنئ
چيني ورکړي
۱۶ ۱۶ نو دَ موسىٰ دَ خسر قيني زامن دَ کجوري له ښهره نه دَ
يهودا له زامنو سره دَ يهودا بيابان ته پورته شول هغه چه دَ
۱۷ عراد په جنوبي لوري دي او لاړل او له اُمت سره اوسيدل ۱۷ او
يهودا له شمعون ورور خپل سره لاړ او هغه کنعانيان چه په صفت
کښ اوسيدل وئې وهل او حرم ئې کړل او دَ هغه ښهر نوم ئې حرمه
۱۸ وباله ۱۸ او يهودا غزه او دَ هغه اطراف واخستل او اشقلون او دَ
۱۹ هغه اطراف او عقرون او دَ هغه اطراف ۱۹ او خداوند له يهودا
سره وه او کوهستانيان ئې تيل وهل ليکن له خوړه ئې و نه يستلي شول
۲۰ ځکه چه هغو څخه دَ اوسپني ګاډي وُو ۲۰ او هغو حبرون کالب ته ورکړ
لکه چه موسىٰ ويلي وُو او ده هغه دري زامن دَ عناق له هغه
۲۱ ځايه و يستل ۲۱ او بني بنيامين يبوسيان چه په اورشليم کښ اوسيدل
و نه يستل نو يبوسيان له بني بنيامين سره په اورشليم کښ
اوسيدل تر دي ورځي پوري
۲۲ ۲۲ او دَ يوسف کور هم بيت ايل ته وختو او خداوند ورسره
۲۳ وه ۲۳ او دَ يوسف کور دَ بيت ايل تالاش کاوه او وړاندِ دَ هغه

بنهر نوم لوز وه ۲۴ نو جاسوسانو يو سړي له بنهرَ باهر ولید ۲۴
او ورته ئي وويل چه مونږ ته دَ بنهر دَ ننوتلو لار را وښيه نو به
مونږ له تا سره مهرباني وکړو ۲۵ نو هغه دَ بنهر دَ ننوتلو لار ورونبوله ۲۵
او دوي بنهر دَ تورې په مخ وواهه لیکن هغه سړي او ټوله خیلخانه
ئي پریښوده ۲۶ نو هغه سړي دَ حتیانو زمکې ته لاړ او یو بنهر ئي ۲۶
جوړ کړ او دَ هغې نوم ئي لوز وباله او هغه نوم ئي تر نن ورځې
پورې دې

۲۷ او منسّي اهل بیتِ شان او کلي ئي ونه یستل او نه ۲۷
اهل تعناک او کلي ئي او نه اوسیدونکي دَ دور او کلي ئي او نه اوسیدونکي
دَ يبلعم او کلي ئي او نه اوسیدونکي دَ مجدو او کلي ئي مګر کنعانیانو
په هغې زمکه کښې دَ اوسیدلو اراده وکړه ۲۸ او داسې وشوه هرکله ۲۸
چه اسرائیل زور ونیو نو کنعانیان ئي دَ بیګار لاندِ کړل او بيخي
ئي ونه یستل

۲۹ او افرائیم هغه کنعانیان چه په جازر کښې وُو ونه ۲۹
یستل نو کنعانیان دَ هغه په منځ کښې په جازر کښې اوسیدل -
۳۰ زبلون دَ قطرون اوسیدونکي ونه ویستل او نه اوسیدونکي ۳۰
دَ نهلول نو کنعانیان دَ هغو په منځ کښې اوسیدل او دَ بیګار
لاندِ وُو ۳۱ او آشر دَ عکو اوسیدونکي ونه یستل او نه دَ ۳۱
صیدون اوسیدونکي او دَ احلب او دَ اکذیب او دَ حلبه او دَ
افیق او دَ رحوب ۳۲ لیکن آشریان دَ کنعانیانو په منځ کښې اوسیدل ۳۲
چه دَ زمکې استوږي وُو ځکه چه هغوي دوي ونه یستل ۳۳ او ۳۳
نفتالي دَ بیتِ شمس اوسیدونکي ونه یستل او نه اوسیدونکي
دَ بیتِ عنات بلکه هغوي دَ کنعانیانو په منځ کښې اوسیدل چه
استوږي دَ زمکې وُو نو ساکنان دَ بیتِ شمس اودَ بیتِ عنات دَ
دوي دَ بیګار دَ لاندِ وُو

۳۴ ۳۴ او اموریانو بنيدان په غره کښې ودربول څکه چه
۳۵ هغوي نه پرېښودل چه خوړ ته کوز شي ۳۵ او اموریانو دَ حرس په
غره کښې دَ اوسیدلو اراده وکړه په ایالون او په شعلبیم کښې او دَ
۳۶ یوسف لاس ټوي شه او هغوي دَ بیګار دَ لاندِ وُو ۳۶ او دَ اموریانو
حد دَ عقربیم له ختلو نه له سالع نه په پاس وه ❖

# دویم باب

۱ ۱ او دَ خداوند فرښته له جلجال نه بوکیم ته پورته شوه او وئي
ویل چه ما تاسي له مصرَ وخیژولئِ او هغې زمکې ته مِ راوستلئِ
چه ما ستاسي پلرونو ته قسم وکړ او وِ ویل چه زه به خپل
۲ عهد له تاسي سره تر ابدَ پوري هیچري مات نه کړم ۲ او تاسي دَدې
زمکي له اوسیدونکو سره عهد مه کوئِ تاسي دَ هغو مذبحونه
۳ ونړوئِ او تاسي زما آواز وا نه وریده تاسي ولي داکړي دي ۳ نو
ما هم وویل چه زه به هغه ستاسو له مخ نه و نه باسم بلکه
هغوي به تاسو لره تنګوونکي وِي او دَ هغو خدایان به تاسو لره
۴ دام وِي ۴ او داسي وشوه هرکله چه فرښتي دَ خداوند په دې
خبري سره ټول بنِي اسرائیل ته خبره وکړه نو اُمّت خپل آوازونه
۵ پورته کړل او وئي ژړل ۵ نو هغو دَدې ځاي نوم بوکیم و باله او
هلته ئي خداوند ته ذبح وکړه

۶ ۶ او یشوع اُمّت روان که نو بني اسرائیل هر یو خپل ملکیت
۷ ته لاړ چه هغه زمکه په میراث واخلِي ۷ او دَ یشوع په ټولو ورځو
کښې اُمّت دَ خداوند عبادت کاوه او دَ هغو ټولو سپین‌بږیرو په
ورځو کښې چه له یشوع نه ئي ورځي اوږدي شوي هغوي چه دَ
خداوند ټول لوي کار ئي ولید هغه چه دَ اسرائیل دَپارَ ئُ کار
۸ وکړ ۸ او یشوع ځوي دَ نون بنده دَ خداوند دَ یوسل لسو کالو

۹ وه چه مړ شه ۹ او دَ خپل وراثت په حد کښں ئي ښخ کړ په
تمنهٔ دَحارس کښں دَ افرائيم په غره کښں چه دَ جاعش دَ غره
۱۰ په شمالي طرف دَي ۱۰ او دغه ټوله پيړۍ هم خپلو پلرونو ته پيوسته
شوه او پس له هغه دويمه پيړۍ پورته شوه چه خداوند ئي نه
پيژاند او نه ئي هغه کار چه دَ اسرائيل دَپارَ ئي وکړ
۱۱ ۱۱ او بني‌اسرائيل دَ خداوند په سترګو کښں شرارت وکړ
۱۲ او دَ بعليم عبادت ئي وکړ ۱۲ او خداوند دَ خپلو پلرونو الله ئي ترک
کړ هغه چه دَ مصر له زمکي ئي راويستل او په نورو خدايانو
پسي وګرزيدل دَ هغو قومونو دَ خدايانو چه له دوي نه چاپيره
۱۳ وُو او هغو ته ئي سجدي وکړي او خداوند ئي په غصّه کړ ۱۳ او
۱۴ خداوند ئي ترک کړ او دَ بعل او دَ عشتاروت عبادت ئي وکړ ۱۴ نو
دَ خداوند غضب په اسرائيل ګرم شه او دوي ئي دَ لوټ کونکو په
لاسونو کښں ورکړل او دَ دښمنانو په لاس ئي خرڅ کړل چه له دوي
نه چاپيره وُو او بيا دوي نه توانيدل چه دَ دښمنانو په مخ کښں
۱۵ ودريږي ۱۵ چرته چه دوي وتل دَ خداوند لاس دَ بدۍ دَپارَ په
دوي وه لکه چه خداوند خبره کړي وه او لکه چه دوي ته ئي
۱۶ قسم خوړلي وه نو دوي ډير تنګ شول ۱۶ او خداوند قاضيان پورته
۱۷ کړل او دوي ئي دَ لوټونکو له لاسه خلاص کړل ۱۷ او دوي دَ خپلو
قاضيانو هم وا نه وريدل بلکه په نورو خدايانو پسي ئي زنا وکړه او
سجده ئي ورته وکړه او له هغي لاري نه چه دَدوي پلرونه پرِ
تلل او حکمونه دَ خداوند ئي منل بيرته شول دوي هسي ونه کړل
۱۸ ۱۸ او هرکله چه خداوند دوي ته قاضيان ودرول نو خداوند
له هغه قاضي سره وه او دوي ئي دَ خپلو دُښمنانو نه خلاص
کړل په ټولو ورځو دَ هغي قاضي کښں ځکه چه خداوند دَدوي له
آهونو دَپارَ پښيمانه شه په سبب دَ آزاروونکو او ټيلوهونکو دَدوي

۱۹ ۱۹ او چه هغه قاضِي به مړ شه نو بيا به دوي وګرزيدل او له خپلو
پلرونو نه به ئي زيات فساد کاوه چه په نورو خدايانو پسي به تلل
چه عبادت ئي وکړي او سجدي ورته وکړي او دوي له خپلــو
۲۰ فعلونو نه وا نه وړيدل او له خپلي سرکښي لاري نه ۲۰ نو دَ خداوند
غضب په اسرائيل ګرم شه و ئي ويل دي دَپارَ چه دي قوم ځما
له هغه عهد نه چه دَ دوي پلرونو ته مِ حکم وکړ او دوي ځما
۲۱ آواز آوريدلي نه دي ۲۱ نو زه به هم بيا هيڅ سړي دَ دوي له مخي
نه و نه شړم له هغو قومونو چه يشوع دَ خپل مرګ په وقت
۲۲ پريښول ۲۲ تاچه زه په هغو اسرائيل وآزمايم چه دَ خداوند لار
ساتِي يا نه چه دوي پرِ لار شِي لکه چه دَ دوي پلرونو هغـه
۲۳ ساتله ۲۳ نو هغه قومونه خداوند پريښودل او زر ئي و نه
يستل او دَ يشوع په لاس ئي ور نه کړل ❖

# دريم باب

۱ ۱ او دا هغه قومونه دِي چه خداوند پريښول چه په دغو ټول
۲ اسرائيل وآزمايي چه ټول جنګونه ئي دَ کنعان نه پيژاندل ۲ تش
دَدي دَپارَ چه دَ بنِي اسرائيلو پيړئِ وپيژني او چه جنګونه زده
۳ کړي تش هغه چه وړاندي ئي نه پيژاندل ۳ دَ فلسطيانو پنځه
سرکرده وُو او ټول کنعانيان او صيدونيان او حويّان چه دَ
لُبنان په کوهستان کښ اوسيدل دَ بعل حرمون له غره نه دَ
۴ حمات تر ننه وتني پوري ۴ او دوي دَ اسرائيل دَ آزمايلو دَپارَ وُو
چه معلوم شِي چه دَ خداوند هغه حکمونه چه دَدوي پلرونو ته
۵ دَ موسیٰ په لاس کړِي وُو واورِي ۵ نو بنِي اسرائيل دَ کنعانيانو
او دَ حتّيانو او دَ اموريانو او دَ فِرزّيانو او دَ حويّانو او دَ يبوسيانو
۶ په منځ کښ و اوسيدل ۶ او دَ هغو لُونړه ئِي دَ خپلو ځانونو دَپارَ

ښځې کړلي او خپلې لوڼړه ئې دَ هغو زامنو ته ورکړلي او دَ هغو
دَ خدایانو عبادت ئې وکړ

۷ نو بني‌اسرائیلو دَ خداوند په سترګو کښې بدي وکړه ۷
او خداوند الله خپل ئې هیر کړ او دَ بعلیم او دَ اشیروت عبادت
ئې وکړ ۸ نو دَ خداوند غضب په اسرائیل ګرم شه او دوي ئې ۸
دَ کوشان رشعتایم دَ آرام نهریم بادشاه په لاس کښې خرڅ کړل نو
بني‌اسرائیلو دَ کوشان رشعتایم خدمت اته کاله وکړ ۹ او چه ۹
بني‌اسرائیلو خداوند ته نعره وکړه نو خداوند بني‌اسرائیل لره
خلاصونکي ودراوه او دوي ئې خلاص کړل غتنئیل زوي دَ قناز
وړوکي ورور دَ کالب ۱۰ او په هغه باندې دَ خداوند روح وه او دَ ۱۰
اسرائیل دَپاره ئې قضئ کوله او دَ جنګ دَپاره ووت او خداوند
دَده په لاس کښې کوشان رشعتایم دَ آرام نهریم بادشاه ورکړ او
دده لاس په کوشان رشعتایم غالب شه ۱۱ او زمکه څلوېښت کاله ۱۱
په آرام وه او غتنئیل زوي دَ قناز مړ شه

۱۲ او بیا بني‌اسرائیلو دَ خداوند په سترګو کښې بدکاري ۱۲
وکړه نو خداوند دَ موآب بادشاه عجلون په اسرائیل مضبوط کړ
ځکه چه دوي دَ خداوند په سترګو کښې بدي وکړه ۱۳ نو هغه ۱۳
بني‌عمون او عمالیق ځان سره جمع کړل او وراغلل او اسرائیل ئې
وواهه او دَ کجورو ښهر ئې په قبضه کښې کړ ۱۴ نو بني‌اسرائیلو ۱۴
دَ موآب دَ بادشاه عجلون خدمت کاوه تر اتلسو کالو پورې ۱۵ او ۱۵
چه بني‌اسرائیل خداوند ته نعره وکړه نو خداوند دوي ته یو
خلاصونکي ودراوه یعني اهود زوي دَ جیرا بنیامیني یو ګس لاسي
سړي نو بني‌اسرائیل دَ هغه په لاس دَ موآب بادشاه عجلون ته
پیشکشي واستوله ۱۶ نو اهود دَ خپل ځان دَپاره دوه مخه توره جوړه ۱۶
کړه چه اوږدوالي ئې یوه څنګل وه او تر جامو دَ لاندې ئې په ښي

۱۷ ورانه پوري و ترله ۱۷ او پيشکشي ئې دَ موآب بادشاه عجلون ته وړاندې
۱۸ کړه او عجلون ډير غټ سړي وه ۱۸ او داسي وشوه هرکله چه له وړاندې
کولو دَ پيشکشئې نه وزګار شه نو هغه قوم چه پيشکشي ئې وروړي
۱۹ وه رخصت کړل ۱۹ او دي له هغي کاڼږي له کان نه چه جلجال څخه دي
وګرزيده او وئې ويل چه اي بادشاه ما څخه ستا دَپارَ يوه دراز خبره
دَه هغه وويل چُپ شه او هغوي ټول چه ورته ولاړ وُو ور نه
۲۰ ووتل ۲۰ نو اهود ورننوت او هغه په سړي بالاخانې کښ يواځي
ناست وه او اهود وويل چه ما څخه تا لره دَ الله خبره ده نو هغه
۲۱ له کرسئې نه پورته شه ۲۱ نو اهود کيڼ لاس اوږد کړ او توره
۲۲ ئې له ښي ورانه نه واخسته او په ګيډه کښ ئې وواهه ۲۲ او قبضه
هم په پله پسي ننه وتله او په پله پسي وازده بنده شوه توره ئې له ګيډې
۲۳ و نه ويستلي شوه او شاطرف ته ئې ووتله ۲۳ نو اهود له منډونه
راووت او دَ بالاخانې ورونه ئې ورپسي بند کړل او قلف ئې کړل
۲۴ ۲۴ او چه دَي ووت نو دَ هغه نوکران راغله او و ئې کتل او ګوره
چه دَ بالاخانې دروازي قلفي شوي وي نو و ئې ويل چه په سوړ
۲۵ کور کښ به ئې خپلي پښي په قرار کړي وِي ۲۵ نو دوي درنګ وکړ
ترڅو چه خجل شول او ګوره چه هغه دَ بالاخانې ورونه نه پرانتل نو
دوي کنجي واخسته او پرائې نتل او ګوره چه خاوند ئې په زمکه
۲۶ مړ پروت دَي ۲۶ او چه دوي ډيل وکړ نو اهود وتښتيد او له
۲۷ کانَ دَ کاڼږو تير نشه او سعير ته ورغي ۲۷ او داسي وشوه چه
په ورتلو سره ئې توريئ ووهله دَ افرائيم په کوهستان کښ او
بني‌اسرائيل له غره نه ورسره کوز شول او دي ئې په مخ کښ
۲۸ ۲۸ او ده هغو ته وويل چه په ما پسي شئې څکه چه خداوند
ستاسي دُښمنان موآبيان ستاسي په لاس کښ درکړل نو دوي
ورپسي کوز شول او دَ يردن ګدرونه ئې تر موآبَ پوري و نيول

۲۹ او یو سړي ئې نه پرېښود چه پوري شي ۲۹ نو په دغه وقت کښ
له موآب په قدر دَ لسو زرو سړي ئې ووهل ټول ښاربه او بناغلي
۳۰ او یو خلاص نه شه ۳۰ نو موآب شغه ورځ دَ اسرائیل تر لاس لاندِ
کړی شه او اتیا کاله زمکه په قرار وه
۳۱ ۳۱ او پس له دغه شمجر زوي دَ عنات وه او له فلسطیانو
ئې شپږ سوه سړي دَ غوایه په چوکه مړه کړل او ده هم اسرائیل خلاص کړل

# ثلورم باب

۱ ۱ او بیا بني اسرائیل دَ خداوند په سترګو کښ بدي وکړه پس له
۲ مرګ دَ اهود ۲ نو دوي خداوند دَ کنعان دَ بادشاه یابین په لاس
کښ خرخ کړل هغه چه په حاصور کښ ئې بادشاهي کوله او دَده
دَ لښکر سردار سیسرا وه او هغه غیر قومونه په حروشي کښ اوسیدل
۳ ۳ او بني اسرائیل خداوند ته نعره وکړه ځکه چه دَ هغه نهه سوه
کاډي دَ اوسپني وُو او هغه بني اسرائیل تر شلو کالو پوري سخت
په تنګ کړل
۴ ۴ او دَبوره بنځه نبیّه دَ لفیدوت ارتینه چه په دغه
۵ وقت کښ ئې دَ اسرائیل عدالت کاوه ۵ او دغه دَبوره دَ کجوري
دَ وني دَ لاندِ ناسته وه دَ رامه او دَ بیت ایل په مینځ کښ دَ افرائیم
په کوهستان او بني اسرائیل به هغې ته دَ عدالت دَپاره ورختل-
۶ نو دي واستاوه او باراق زوي دَ ابینوعم ئې له قادش دَ نفتالي نه
راوباله او دي ورته ووېل چه خداوند الله دَ اسرائیل امر کړي
نه دَي څه؟ ته لاړ شه او دَ تابور غره ته ئې راوکاږه او دَ ځان
سره لس زره سړي له بني نفتالي نه او له بني زبلون نه واخله
۷ ۷ او زه به دَ قیشون رود ته سیسرا سردار دَ لښکر دَ یابین له
کاډیو او له ټولیو سره تا ته راوکاږم او ستا په لاس به ئې درکړم

۸ ۸ نو باراق دي ته وويل چه كه ته راسره ځي نو زه به لاړ شم او كه
۹ ته راسره نه ځي نو زه هم نه ځم ۹ نو دي ورته وويل زه ضرور
درسره ځم تا هم ستا فخر و به نه شي په هغي لاري كښ
چه ته په كښ تلونكي يي ځكه چه خداوند به
سِيسرا دَ يوي ښځي په لاس كښ خرڅ كړي او دَبوره پورته شوه
۱۰ او له باراق سره قادش ته لاړه ۱۰ او باراق زبلون او نفتالي قادش
ته راوبلل او دَده په پيروئ لس زره سړي وختل او دبوره هم
۱۱ ورسره وخته ۱۱ او حبر قيني له قيني جدا شه يعني له بني حوباب
اونبي دَ موسیٰ او بلوط ځخه په ځعنايم كښ چه قادش ځخه دَي
۱۲ خيمي لي ودرولي ۱۲ او سِيسرا ته خبر وركړي شه چه باراق زوي
۱۳ دَ ابينوعم دَ تابور غره ته وخوت ۱۳ نو سِيسرا ټول كاډي نهه سوه
كاډي دَ اوسپني راجمع كړل او هغه قوم چه ورسره وه له حروشه
۱۴ دَ غير قومونو دَ قيشون تر رود پوري ۱۴ نو دبوري باراق ته وويل
پورته شه ځكه چه دا هغه ورځ ده چه په دغي كښ به خداوند
سِيسرا ستا په لاس كښ دركړي خداوند ستا دَ وړاندِ وتلي نه دَي
شه؟ نو باراق دَ تبور له غره نه كوز شه او ورپسي لس زره سړي
۱۵ ۱۵ نو خداوند سِيسرا او ټول كاډي او ټول لښكر دَ باراق دَ وړاندِ
دَ توري په مخ كښ وغورزول نو سِيسرا له كاډي نه كوز شه او
۱۶ پياده وتښتيده ۱۶ او باراق په كاډيو او په لښكر پسي ترحروشه
دَ غير قومونو پوري لاړ او دَ سِيسرا ټول لښكر دَ توري په مخ
پريوت يو هم پاتي نه شه
۱۷ ۱۷ او سِيسرا پياده وتښتيده خيمي دَ ياعيل ښځي دَ حابر قيني
ته ځكه چه په مينځ دَ يابين بادشاه دَ حاصور او دَ حابر قيني په
۱۸ خاندان كښ صلح وه ۱۸ نو ياعيل دَ سِيسرا استقبال ته ووته
او دي ورته وويل نزدي راشه اي خاونده نزدي راشه مه ويريږه

١٩ نو دي دَ هغي خيمي ته ورغي نو په برستن ئي پټ كړ ١٩ نو ده هغي
ته وويل چه لږ څه اوبه راباندِ وڅښوه ځكه چه زه تږي يم نو
٢٠ دي دَ پيوټرَيَ پرانت او پرِي وڅښول او بيا ئي پټ كړ ٢٠ او ده
هغي ته وويل چه دَ خيمي په وره كښ ودريږه او داسي به وشي
چه كه څوک سړي راشي او درنه پوښتنه وكړي چه دلته څوک سړَي
٢١ شته نو ته ورته ووايه چه نشته ٢١ نو ياعيل دَ حابر ښځي دَ
خيمي ميخ واخست او ډبلۍ په لاس كښ ونيوله او غلي ورغله
او ميخ ئي دَ هغه په لوګنده كښ وواهه او زمكي ته ووت او
٢٢ هغه په درانه خوب كښ او مانده وه نو مړ شه ٢٢ او ګوره چه
باراق په سِيسرا پسي شه نو ياعيل دَده استقبال ته ورووتله
او دي ورته وويل چه راشه زه به هغه سړَي درښكاره كړم
چه ته ئي لټوي او دَي هغي ته ورغي او ګوره چه سِيسرا مړ پروت
٢٣ وه او ميخ ئي په لوګنده كښ وه ٢٣ نو الله په دغي ورځي كښ
٢٤ يابين بادشاه دَ كنعان دَ بني‌اسرائيل دَ وړاندِ ذليل كړ ٢٤ او دَ
بني‌اسرائيل لاس نهايت په زور شه چه په يابين بادشاه دَ كنعان
غالب شول څو چه يابين بادشاه دَ كنعان ئي نيست كړ *

# پنځم باب

١ ١ نو دَبوره او باراق زوي دَ ابينوعم په دغي ورځي كښ سندري
ووېلي او وئي ويل

٢ ٢ دَپار دَ سركوهيءِ كولو دَ سركوهانو په اسرائيل كښ
او دَپار دَ خپلو خانونو نذر كولو دَ اُمت
دَ خداوند مباركي وكړئِ
٣ اوريءِ اي بادشاهانو او غوږ ونيسئ اي غټانو
زه هو زه به خداوند لره سندري ووايم

زه به خداوند الله دَ اسرائیل لره سرود وغږوم
۴ ۴ اي یهوه ستا په وتلو له سعیر نه-
او تا پنډ وکړ د ادوم له ورشونه پلي پلي
زمکه ولړزیدله او آسمانونه هم وڅڅیدل-
هم هسي اوریځو اوبه وڅڅولي-
۵ ۵ دَ یهوه له مخ نه غرونه په زلزله شول
او هغه سینا دَ یهوه الله دَ اسرائیل له مخ نه-
۵ ۶ په ورځو دَ شمجر زوي دَ عنات کښ-
په ورځو دَ یاعیل کښ بادشاهي لاري بندي شوي-
او تیریدونکي دَ لارو به په کږو لارو کښ تلل
۷ حاکمان په اسرائیل کښ پاتي شول پاتي شول-
څو چه زه دَبوره پورته شولم-
زه په اسرائیل کښ مور پورته شوم
۸ ۸ نو دوي نوي خدایان غوره کړل-
هغه وقت په دروازو جنګ وه-
په څلویښتو زرو دَ اسرائیل کښ-
یو ډال یا یوه نیزه لیدلي نه شوه-
۹ ۹ زما زړه دَ اسرائیل دَ حاکمانو په لوري دَي-
هغوي چه په اُمّت کښ په خوښئ سره حاضر کیدل-
دَ خداوند مبارکي کوئ
۱۰ ۱۰ اي چه تاسي په سپینو خرو سواره یئ ووایئ
او چه په عدالت کښینئ-
اوچه په لاري کښ ځئ
۱۱ ۱۱ له آوازه دَ لندي راکښونکو دَ اوبو وکښونکو په ځایونو کښ-
هلته به دَ خداوند دَ صداقت بیان وکړي-

دَ حکومت صداقت ئي په اسرائيل کښې
هغه وقت دَ خداوند اُمّت دروازو ته ته
١٢ ويښه شه ويښه شه اي دَبُوري ١٢
ويښه شه ويښه شه غزل ووايه
پورته شه اي باراقه دَ ابينوعم زويه او خپله آسيري اسيره کړه
١٣ نو هغه وقت باقيه دَ غټانو او دَ خلقو راکوز شول ١٣
خداوند ماته په جبّارانو کښې راکوز شه
١٤ هغوي له افرايمَ راغلل چه بيخ ئې په عماليق کښې وه ١٤
او په تا پسې بنيامين ستا له قوم سره
له ماکير نه حاکمان کوز شول
او له زبلون نه نيونکي دَ همسا دَ آمير
١٥ او سرداران په يساکر کښې له دَبُوري سره ١٥
او لکه يساکر هسې باراق
په هغه پسې خوړ ته و غورزيدل
دَ روبين په ولو دَ زړه لوي مصلحونه وُو
١٦ ولې ته دَ شپلونو په مينځ کښې ولاړوي ١٦
دَ کنډکونو دَ شپيلکئ شپيلئ آوريدلو ته ؟
دَ روبين ولو ځنځه - دَ زړه لوئي لټوني وي
١٧ جلعاد پوري غاړه دَ يردنَ ساکن وه ١٧
او دان ولې په خپلو بېړيو کښې اوسيده
اشير دَدرياب په غاړي ناست وه
او په خپلو بندرونو کښې ساکن شه
١٨ زبلون داسي قوم وه چه خپل ځان ئې ترمرګ پوري پيغور کړ ١٨
او نفتالي هم دَ ميدان په اوچتو ځايونو کښې
١٩ بادشاهان راغلل و جنګيدل هغه وقت دَ کنعان بادشاهان ١٩

په تعنک کښې دمجدّو په اوبو وجنګيدل: هغو دروپيو لوټ وانه خست
٢٠ ٢٠ آسمانونه وجنګيدل
ستوري له خپلو منزلونو نه له سِيسرا سره وجنګيدل
٢١ ٢١ دَ قيشون رود هغوي و بهول
رود قديم رود دَ قيشون
اي څما ځانه تا قوّت ناک پايمال کړي دِي
٢٢ ٢٢ هغه وقت دَ آسونو سمونه تکول
دُ هغو دَ قوّت ناکو په ترپو ترپو وهلو
٢٣ ٢٣ په ميروز لعنت کوئِ دَ خداوند فرښتو ويل
دَ هغه په اوسيدونکو په لعنت سره لعنت کوئِ
ځکه چه دوي دَ خداوند مددګاريِ ته رانه غلل
مددګاري دَ خداوند دَ جبارانو په مقابل کښې
٢٤ ٢٤ ياعيل دَ حابر قيني ښځه دِ له ټولو ښځو نه مبارکه وِي
له هغو ښځو نه چه په خيمو کښې دِي مبارکه دِ وِي
٢٥ ٢٥ هغه اوبه وغوښتلي دي پئِ ورکړل
دَ اميرانو په کاسي کښې ئي کُچي راوړل
٢٦ ٢٦ خپل لاس ئي ميخ ته اوږد کړ
او ښَي لاس ئي دَ کاريګرو ډبلئِ ته
او سِيسرا ئي وواهه او دَ هغه سرئي مات کړ
او چيت ئي کړ او لوګنده دَ هغه ئي ځيري کړه
٢٧ ٢٧ دَدي دَ پښو په منځ کښې ولويده پريوت څملاست
دَدي دَ پښو په منځ کښې ولويده پريوت
چرته چه ولويده هلته مړ پريوت
٢٨ ٢٨ دَ سِيسرا مور له دريڅي نه وکاته
او له کنکرو ئي ناره وکړه

چه ذده کاړي له راتلو نه ولي ډيل کوي ؟
ذده دَ کاډيو پايي ولي درنګ کوي ؟
٢٩ نو ددي دانا بيبيانو ځواب ورکړ ٢٩
بلکه دي په خپله ځان له ځواب وګرزاوه
٣٠ چه ګنړه لوټ به ئي موندلي او ويشلئ نه وي څه ؟ ٣٠
يوه يا دوه پيغلي هر سړي لره
لوټ دَ رنګينه جامو سيسرا لره
دَ رنګينه نقشدارو جامو لوټ
رنګينه جامي دورخه نقشداري له غاړي دَ لوټ شويونه
٣١ داسي به ستا ټول دښمنان نيست شي اي خداونده ٣١
او ددوه دوستان دِ لکه وتل دَ نمر ذده په زور کښ وي
او زمکه څلويښت کاله په آرام وه

# شپږم باب

١ آ بيا بني اسرائيلو دَ خداوند دَ وړاندِ بدي وکړه نو خداوند هغوي
٢ اوه کاله دَ مديانيانو په لاس کښ ورکړل ٢ او دَ مديان لاس
په اسرائيل قوي شه او دَ مديانيانو په سبب بني اسرائيل دَ خپلو
ځانونو دَپارَ سمڅي په غرونوکښ اوغارونو او مځيودي
٣ ځايونه ئي جوړ کړل ٣ او چه اسرائيل به کرونده وکړه نو مديانيان
٤ او عماليق او مشرقيان به ورختل ٤ او په دوي به ډيره شول
او ددوي دَ زمکي حاصل به ئي برباد ول دَ غزه دَ ورتلو ترځايه
پوري او دَ اسرائيل دَپارَ به ئي دَ ژوندانه دَپارَ خوراک نه پريښود
٥ نه غيلي نه غوايان او نه خرونه ٥ ځکه چه هغوي به له خپلو
څارويو او کيږديو سره ورختل او لښکر به ئي وکړ لکه ملخان په
کثرت کښ او ددوي او ددوي دَ اوښانو شمار به نه وه او زمکي

٦ ته به ورننوتل چه خرابه ئي کړي ٦ نو دَ مديانيانو له کبله اسرائيل
ډير ذليل شول او بنيِ اسرائيل خداوند ته فرياد وکړ
٧ ٧ او داسي وشوه هرکله چه بنيِ اسرائيل خداوند ته فرياد وکړ
٨ دَ مديانيانو په سبب ٨ نو خداوند يو نبي سړي بنيِ اسرائيل ته
واستاوه او دوي ته ئي وويل چه خداوند الله دَ اسرائيل داسي
وائي چه ما تاسي دَ مصر له زمکي نه راپورته کړئ او دَ غلامئ له
٩ کور نه مِ راوبستلئ ٩ او دَ مصريانو له لاسَ مِ خلاص کړئ او له
لاسَ دَ ټولو تنګونکو ستاسو او هغوي مو ستاسي له وړاندِ نه
١٠ وبستل او دَ هغو زمکه مو تاسي ته درکړه ١٠ او تاسو ته مِ وويل
چه زه خداوند ستاسي الله يم تاسي دَ اموريانو دَ خدايانو نه
مه ويريږئ هغوي چه تاسي ئي په زمکه کښِ اوسئ او تاسو ځما
آواز وا نه وريده
١١ ١١ بيا دَ خداوند فرښته راغله او په عفره دَ يوآس ابي عزري
کښِ دَ بلوط دَ لاندِ کښيناسته او دَ هغه زوي جدعون په چرخشت
١٢ کښِ غنم ځندل چه له مديانيانو ئي پټ کړي ١٢ نو دَ خداوند فرښته
ورته ظاهره شوه او ورته وئي ويل چه خداوند له تا سره دي اي
١٣ جبّاره پهلوانه ١٣ نو جدعون ورته وويل اي خداوندَ نوکه خداوند
له مونږ سره وَيَ نو ولي دا ټول مونږ ته ورسيدل او چرته دِي
هغه ټول عجائبات دَده چه ځمونږ پلرونو ئي بيان راته وکړ وئي ويل
چه مونږ خداوند له مصرَ را و نه ويستلو څه؟ او اوس خداوند
١٤ ترک کړلو او دَ مديانيانو په لاس کښِ ئي کښيښودلو ١٤ نو خداوند
ورته نظر وکړ وئي ويل لاړ شه په دي خپل قوّت سره او اسرائيل
١٥ دَ مديانَ له لاسَ خلاص کړه زه دِ نه آستوم څه؟ ١٥ او ده ورته
وويل اي خاوندَ زه په څه سره اسرائيل خلاص کړم ګوره چه ځما
خيلخانه په منسّي کښِ خواره ده او زه دَ خپل پلار په کور کښِ

١٦ وروکي يم ۱٦ نو خداوند ورته وويل چه زه به په يقين سره له تا
١٧ سره يم او ته به مديانيان لکه دَ يو سړي ووهي ۱۷ نو ده ور ته
وويل چه که ما ستا په سترګو کښ فضل موندلَی وي نو ما ته
١٨ څه نښه را ښکاره کړه چه ته راسره خبري کوې ۱۸ ته له دي ځاي
نه مه ځه څوچه زه درته راشم او خپله هديه راوباسم او ستا
دَ وړاندِ ئي کيږدم هغه وويل زه به پاتي شم څوچه ته بيا راشي
١٩ ۱۹ نو جدعون ننوت او يو سيرلي دَ بزي او دَ يوي ايفي دَ اوړو
ئي فطيري ډوډئِ او غوښي ئي په ټوکاره کښ کښيودلي او ښوروا
ئي په کټوئِ کښ کښيښوه او دَ بلوط دَ لاندِ ئي ورته راويستل او
٢٠ ورته ئي وړاندِ کړل ۲۰ نو فرښتي دَ الله ورته وويل چه غوښه
او فطيري ډوډئِ واخله او په دغي پرښي ئي کيږده او ښوروا پرتوي کړي
٢١ او هغه هم داسي وکړل ۲۱ نو دَ خداوند فرښتي دَ هغي همسا څوکه
چه ئي په لاس کښ وه اوږده کړه او په غوښه او په فطيره
ئي ولګوله نو له هغي پرښي نه اور پورته شه او غوښه او فطيري ئي
٢٢ وخوړل او فرښته دَ خداوند دَ هغه له سترګونه لاړه ۲۲ نو جدعون
وليده چه هغه دَ خداوند فرښته وه نو جدعون وويل آه !
٢٣ اي خاونده يهوه څکه چه ما دَ خداوند فرښته مخامخ وليده ۲۳ نو
خداوند ورته وويل چه تا لره سلام دَي مه ويريږه نه به مړ کيږي
٢٤ ۲۴ نو جدعون هلته يو قربانګاه خداوند لره جوړ کړ او هغه ئي
يهوه شلوم وباله تر دي ورځي پوري دَ ابيعزرانو په عفره کښ دَي
٢٥ ۲۵ او په دغي شپي کښ داسي وشوه چه خداوند ورته وُوِ
چه ته هغه غويَ واخله چه ستا دَ پلار دي او يو بل غويَ اوه
کلنيَ او دَ بعل مذبح چه ستا دَ پلار ده و ئي نړوه او آشيره
٢٦ چه ورځنه دَي پري ئي کړه ۲٦ او دَ دغه حصار ځاي په سر دَ خپل
خداوند الله دَ پاره يوه مذبح جوړه کړه په ترتيب سره او دويم

غوبي واخله او په لرګو دَ هغه اشيره چه پريکړي دِ ده سيځونکي قرباني
۲۷ وخيژوه ۲۷ نو جدعون لس سړي واخستل له خپلو نوکرانو نه لکه
چه خداوند ورته خبره وکړه وئي کړل او چه دي دَ خپل پلار له
کوره او دَ ښهر له خلقو نه ويريده چه دا کار دَ ورځي وکړي نو دَ
۲۸ شپي ئي وکړ ۲۸ نو دَ ښهر خلق سحر وختي پورته شول او کوره چه
دَ بعل مذبح نړيدلي ده او هغه اشيره چه ورځنه وه پريکړي شوي
ده او دويم غويي په هغه مذبح چه جوړه شوي وه وخيژولي شه
۲۹ ۲۹ نو يو خپل ملګري ته ئي وويل چه دا کار چا کړي دي او پوښتنه
ئي وکړه او وئي لټول وئي ويل چه جدعون دَ يوآش ځوي دا کار
۳۰ کړي دي ۳۰ نو دَ ښهر خلقو يوآش ته وويل چه خپل زوي راوباسه
چه مړ شي ځکه چه ده دَ بعل مذبح ونړوله او هغه اشيره چه
۳۱ ورځنه وه پرې ئي کړه ۳۱ نو يوآش هغو ټولو ته چه ورته ولاړ وُو
وويل چه تاسي دَ بعل دَپارَ جګړه کوئِ او خلاصوئِ ئي هغه چه
دَده دَپارَ جګړه کوي په نن سحر کښ دِ مړ شي که هغه الله وي
نو دَ خپل ځان دَپارَ دِ جنګ وکړي ځکه چه دَده مذبح چا نړولي
۳۲ دَه ۳۲ نو په دغي ورځي کښ ده هغه يربعل وباله وئي ويل
چه بعل به ورسره پخپله جګړه وکړي ځکه چه هغه دَده مذبح
نړولي ده
۳۳ ۳۳ نو ټول مديانيان او عماليق او مشرقيان جمع شول
۳۴ او پوريوتل دَ يزرعيل په خوړ کښ ډيره شول ۳۴ او دَ خداوند
روح په جدعون نازل شه او توري ئي وغږوله او ابيعزر ورپسي
۳۵ جمع شول ۳۵ او ټول منسّي ته ئي قاصدان واستول او هغه هم
ورپسي جمع شول او آشير ته ئي هم قاصدان واستول او زبلون
او نفتالي ته او دغه هم ورپسي وختل دَدوي دَ ملاکيدلو دَپارَ
۳۶ ۳۶ او جدعون الله ته وويل که ته اسرائيل ځما په لاس خلاصوي

۳۷ لکه چه تا وویل ۳۷ نو گوره چه زه دَ وړیو ورګ په درمند کښ
ږدم نو که شبنم یواځي په ورګ پریوت او ټوله زمکه وچه وِي
نو به زه پوه شم چه ته به څما په لاس لکه چه تا ویلي دِي ټول
۳۸ اسرائیل خلاص کړي ۳۸ او داسي وشوه چه صباح دَقِتي پورته شه
او هغه ورګ ئې تول کړ او شبنم ئې له ورګ نه نچوړ کړ نو کاسه
۳۹ له اوبو نه ډکه شوه ۳۹ نو جدعون الله ته وویل چه ستا خفګي
دِ په ما کړمَ نه شِي چه زه تش یو بل وار خبره وکړم تش دا وار
په ورګ آزمایښت کوم چه ورګ دِ یواځي وچ پاتي شِي او په ټولي
۴۰ زمکي دِ شبنم وِي ۴۰ نو الله په دغې شپي داسي وکړل چه یواځي
په ورګ کښ وچ والَی وه او په ټولي زمکي شبنم وه ✤

# اوم باب

۱ ۱ او یروبعل چه جدعون دَي او ټول خلق چه ورسره وُو سحر
وقتِي پورته شول دَ حرود چینې څخه دیره شول او دَ مدیانیانو دیره
دَدوي په شمال طرف موره غره څخه په خوړي کښ وَه
۲ ۲ او خداوند جدعون ته وویل چه دغه خلق چه له تا
سره دَي ډیر دَي چه زه به مدیانیان دَدوي په لاس کښ ورکړم
هسي نه چه اسرائیل څما په حضور فخر وکړي وواېي چه زه خپل
۳ لاس خلاص کړم ۳ او اوس دَ خلقو په غوږونو کښ منادِي وکړه
و وایه هغه څوګ چه ویریږي او ترسیږي و دِ ګرزي او دَ جلعاد
له غره نه دِ وجاروزِي نو له خلقو نه دوویشت زره وګرزیدل او
لس زره پاتي شول
۴ ۴ او خداوند جدعون ته وویل چه خلق لا تر اوسه
ډیر دَي اوبو ته ئې کوز کړه نو زه به ستا دَپارَ هلته کښ دوي
وآزمایم او داسي به وشِي چه دَ چا دَپارَ چه زه درته ووایم چه

دا دِ درسره ځِي نو هغه دِ درسره ځِي او هر هغه څوک
چه زه دَ هغه په باب کښې درته ووايم چه دا دِ نه ځِي نو هغه
۵ دِ درسره نه ځِي ۵ نو ده خلق اوبو ته کوز کړل او خداوند جدعون
ته وويل چه هر هغه څوک چه اوبه په ژبي څټِي لکه چه سپَي
ئي څټِي نو هغه جدا ودروه او هسي هر هغه څوک چه په زنګنونو
۶ اوبو ته ټيټ شِي ۶ او شمار دَ هغو چه اوبه ئي په لاسونو خپلي
خولي ته وروړي دري سوه سړِي وُو او نور خلق چه وه دَ اوبو
۷ څښلو ته په خپلو زنګنونو ټيټ شول ۷ نو خداوند جدعون ته
وويل چه زه به په دغو دريو سوو سړيو چه اوبه ئي په لپو وڅښلي
تاسو خلاص کړم او مديانيان به ستاسو په لاس کښې درکړم او نور
۸ خلق چه دي هر يو دِ خپل مکان ته لاړ شِي ۸ نو خلقو توښه په
خپلو لاسونو کښې واخسته او تُوري ئي هم او نور سړِي دَ اسرائيل
ئي هر يو خپلي کيږدئ ته واستاوه او هغه دري سوه سړِي ئي
پاتي کړل او دَ مديانيانو ډيره تړِ دَ لاندِ په خوړ کښې وه
۹ ۹ او په دغي شپي کښې داسي وشوه چه خداوند ده ته وويل
چه پورته شه لښکرګاه ته کوز شه ځکه چه ما هغوي ستا په
۱۰ لاس کښې درکړِي دِي ۱۰ او که ته له کوزيدلو ويريږي نو ته دَ خپل
۱۱ نوکر فوراه سره لښکرګاه ته کوز شه ۱۱ نو ته به هغه خبري چه
دوي ئي کوِي واوري او بيا ستا لاسونه به تکړه شِي چه لښکرګاه
ته به ورکوز شي نو دَي او دَده نوکر فوراه هغو ورستينو سپاهيانو
۱۲ ته په لښکرګاه کښې کوز شول ۱۲ او مديانيان او عماليقيان او ټول
مشرقيان چه په خوړ کښې ئي اړولي وُو لکه ملخان دومره ډير وُو
او اوښان ئي بيحسابه وُو په کثرت کښې دَ هغو شګو په شان
۱۳ چه دَ درياب په غاړه وِي ۱۳ او جدعون ورغَي او ګوره چه يو سړِي
خپل ملګرَي په خپل خوب خبراوه ويل ئي ګوره ما يو خوب ليدلَي

دبې چه دَ اوربشو دَ ډوډيِ يوه ګرده دَ مديانيانو په لښکرګاه کښې
ورغړيدله او يوې کيږدئ ته ورغله او وئې وهله او چه پريوتله نو
وائې ړوله نو کيږدئ پريوتله ۱۴ ملګرِي ئې ځواب ورکړ و ئې ويل چه ۱۴
دا هيڅ نه دِي مګر توره دَ جدعون دَ يوآس دَ ځوي مرد دَ اسرائيل
نو الله ټول مديان او ټول لښکر دَده په لاس کښې ورکړ ٭
۱۵ او داسې وشوه چه جدعون دَ هغه خوب خبره او تعبير ۱۵
ئې واوريده نو سجده ئې وکړه او دَ اسرائيل لښکرګاه ته وګرزيده
وئې ويل پورته شئِ ځکه چه خداوند دَ مديانيانو لښکر ستاسو په
لاس کښې درکړ ۱۶ نو هغه درې سوه سړِي ئې په درېو ډلو ووېشل ۱۶
او ټولو په خپلو لاسونو کښې تُوريْ او خالي منګي چه مشعلونه ئې په
منځ کښې وُو کېښول ۱۷ او هغوي ته ئې وويل ما ته ګوريِ او داسې ۱۷
کوئِ او ګوريِ چه زه دَ لښکرګاه آخر ته راشم او داسې به وِي لکه
چه زه کوم تاسې هم داسې کوئِ ۱۸ او هرکله چه زه او هغه ټول چه ۱۸
له ما سره دِي تُوريِ ووهو نو تاسې هم تُوريِ ووهئِ دَ ټول لښکرګاه
په ګردګرد او ووايئِ چه خداوند لره او جدعون لره
۱۹ نو جدعون او هغه سل سړِي چه ورسره وُو دَ لښکرګاه ۱۹
آخر ته ورغيَ دَ دويمي پهرې په اوّل کښې چه په دغه وقت کښې ئې
پهره داران نوي پورته کړل نو دوي تُوريْ ووهلي او منګي چه په
لاس کښې ئې وُو مات ئې کړل ۲۰ او هغو درېو ډلو تُوريِ ووهلي او ۲۰
منګي ئې مات کړل او مشعلونه ئې په کينړ لاس کښې ونيول او تُوريِ
ئې په ښي لاسونو کښې چه وئې وهي او نارې ئې کړې چه دَ خداوند
تُوره او دَ جدعون ۲۱ او هغوي هر يو دَ لښکر په چاپېره په خپل ۲۱
ځاي کښې ودريدل نو ټول لښکر وزغليده او نارې ئې کړې او وئې
تښتول ۲۲ او هغو درېو سوو تُوريِ ووهلي او خداوند دَ هر يوه ۲۲
تُوره دَ هغه په ملګرِي او په ټول لښکر ولګوله نو لښکر بيت شطه

ته تر صريره پوري تر ژبي دَ آبِل محوله چه طبات ته نژدې دي وتښتېدل
۲۳ ۲۳ نو دَ اسرائيل سړي له نفتالي او له آشيره او له ټوله منسّي
۲۴ نه راجمع شول او په مديانيانو پسي شول ۲۴ نو جدعون ټول
كوهستان دَ افرائيم ته قاصدان واستول و ئي ويل چه دَ مديانيانو
مقابلي ته راكوز شئ او له هغو نه اوبه واخلئ تر بيت باره پوري
يردن نو ټول سړي دَ افرائيم جمع شول او اوبه ئي تر بيت باره
۲۵ او تر يردن پوري واخستلې ۲۵ او دوه اميران دَ مديانيانو غراب
او زئيب ئي ونيول او غراب ئي دَ غراب په كټ مړ كړ او زئيب
ئي دَ زئيب په چرخښت كښې مړ كه او په مديانيانو پسي شول او دَ
غراب او دَ زئيب سرونه ئي جدعون ته پوري غاړه دَ يردن راوړل +

# اتم باب

۱ ۱ او ده ته دَ افرائيم سړو وويل چه دا څه خبره ده چه له موږ
سره دِ وكړه چه بيځي موږ دِ ونه بللو دَ مديانيانو سره دَ جنګ ورتللو
۲ دَپاره دوتې او دوي له هغه سره سخته دعوي وكړه ۲ نو ده هغوي
ته وويل چه ما اوس ستاسو په برابر څه وكړل دَ افرائيم پاتې شوي دَ انګور انړول
۳ دَ ابيعزر دَ انګورو له شكولو نه ښه نه دي څه؟ ۳ الله دَ مديانيانو دوه اميران
ستاسي په لاسونو كښې دركړل غريب او زئيب پس ما ستاسو په برابر دَ څه كولو
توان لاره چه ده دا خبره وكړه نو دَ دوي روح له ده نه سُست شه
۴ ۴ او جدعون يردن ته راغې دَي او هغه دري سوه سړي چه
۵ ورسره وُو پوري وتل ستړي وُو او زغلونكي وُو ۵ نو دَ سُكات
سړو ته ئي وويل چه دَ ډوډئ ګردي هغو خلقو ته وركړئ چه
له ما سره دي څكه چه دوي ستړي دي او زه دَ مديان په دواړو
۶ بادشاهانو پسي يعني ذبح او ضلمناع پسي زغلم ۶ نو دَ سُكات
سردارانو وويل چه دَ ذبح او دَ ضلمناع لاسونه اوس ستاسي

۷ په لاس کښې دِي څه ؟ چه سونږ ستا لښکر ته ډوډئ ورکړو ۷ او
جدعون وویل هرکله چه خداوند ذبح او ځلمناع څما په لاس
کښې راکړي هغه وقت به ستاسو غوښي دَ بیابان له اغزو سره
۸ او له بکرکلنړو سره غوبل کړم ۸ او دې له هغه ځاي نه فنوئیل ته
وخوت او هغو ته ئې هم داسې وویل نو دَ فنوئیل خلقو داسي
۹ ځواب ورکړ لکه چه دَ سُکات خلقو ځواب ورکړي وه ۹ دَ فنوئیل
خلقو ته ئې هم خبره وکړه وئي ویل هرکله چه زه په سلامتیا سره
راوګرزم نو دا برج به ونړوم
۱۰ ۱۰ او ذبح او ځلمناع په قرقور کښې وُو او لښکري ئې ورسره
وې په قدر دَ پنځلسو زرو هغه ټول پاتې شوي له واړه لښکره
دَ مشرقیانو او هغوي چه پرېوتلي وُو یوسل شل زره توره زن
۱۱ سړي وُو ۱۱ او جدعون دَ کېږدیو دَ اوسیدونکو په لاري وخوت
چه نوبَه او دَ یاکبهاه په مشرقي لوري وه او لښکر ئې وواهه
۱۲ ځکه چه هغه لښکر بې پروا وه ۱۲ او ذبح او ځلمناع وتښتیدل
او دوي ورپسې ورغلیدل او دواړه پادشاهان دَ مدیان ذبح
۱۳ او ځلمناع ئې ونیول او ټول لښکر ئې هک پک کړ ۱۳ او جدعون
دَ یوآس ځوي له جنګ نه دَ حارس له ختني نه ستون شه -
۱۴ ۱۴ او دَ سُکات له خلقو نه ئې یو ځوان ونیوه پوښتنه ئې ترې وکړه
او هغه ده ته سرداران دَ سُکات او سپین ږیري ئې اوه اویا سړي
۱۵ ولیکل ۱۵ او دَ سُکات خلقو ته ورغي وئې ویل ګوره ذبح او
ځلمناع هغوي چه دَ دوي په سبب دِ مونږ ته پېغور راکړ وتو ویل
چه اوس دَ ذبح او ځلمناع لاسونه ستا په لاس کښې دِي څه؟
۱۶ څو چه ستا سړو ته چه ستړي شوي دِي ډوډئ ورکړو ۱۶ او دَ
بنهر سپین ږیري ئې ونیول او دَ بیابان اغزي او بکرکلنړئ ئې واخستلې
۱۷ او دَ سُکات خلق ئې پرې وپوهول ۱۷ او دَ فنوئیل برج ئې ونړاوه

۱۸ او دَ بنهو سړِي ئې قتل کړل ۱۸ او ذَبَح او ضَلمناع ته ئې وويل چه
هغه سړِي چه تاسو په تابور کښې قتل کړل څرنګ وُو؟ دوي ورته
وويل چه ستا په شان وُو دَ هر يوه صورت لکه دَ شاهزاده-
۱۹ ۱۹ او ده وويل هغوي مِ وروڼه وُو څما دَ مور ځامن. هغه
يهوه حَيّ دَي که چري مو هغه ژوندِي پرېښي وي نو ما
۲۰ به تاسي وژلي نه وَي ۲۰ نو ده خپل مشر زوي يتر ته وويل پورته
شه مړه ئې کړه نو هغه ځوان خپله توره نه ويستله ځکه چه هغه
۲۱ ووېرېده چه لا تر اوسه زلمي وه ۲۱ نو ذَبَح او ضَلمناع وويل چه
ته پخپله پورته شه حمله را باندِ وکړه ځکه لکه چه سړَي وِي
هسي ئې زور وِي نو جدعون پورته شه او ذَبَح او ضَلمناع ئې
قتل کړل او هغه مياشتي چه دَدوي دَ اوښانو په غاړو کښې وې
تر وا ئې خستلې

۲۲ ۲۲ او دَ اسرائيل سړو جدعون ته وويل چه ته او ستا
ځوي او ستا دَ ځوي ځوي دِ په مونږ حاکِمي کوِي ځکه چه تا
۲۳ مونږ دَ مديانيانو له لاسَ خلاص کړي يُو ۲۳ نو جدعون ور ته
وويل چه نه زه په تاسي حاکِمي کوم او نه څما ځوي په تاسي
۲۴ حاکِمي کوِي بلکه خداوند به په تاسي حاکِمي وکړِي ۲۴ بيا جدعون
دوي ته وويل چه زه له تاسي نه سوال کوم چه تاسي هر يو
ما ته دَ لوټ والَئ راکړِئ ځکه چه هغو دَ سرو زرو والَئ لرلي ولي
۲۵ چه دوي اسماعيليان وُو ۲۵ نو دوي ورته وويل چه مونږ به په
خوښئِ سره درکړُو او هغوي څادر وغوړاوه او هر يوه والَئِ دَ
۲۶ لوټ په کښې واچولې ۲۶ او وزن دَ والَئِ دَ سرو زرو چه ده
سوال وکړ يو زر اوه سوه (مثقاله) دَ سرو زرو وه بي له مياشتو
او له اوبړيو او له ارغواني جامو نه چه دَ مديان په بادشاهانو
۲۷ وُو او بي له غړونديو چه دَدوي دَ اوښانو په غاړو کښې وُو ۲۷ نو

جدعون له هغو نه یو افود جوړ کړ او هغه ئې په خپل ښهر
عفره کښ کینښود او هلته کښ ټول اسرائیل د هغه په پیروي
کښ زناکار شول او هغه د جدعون او د ده د کور د پاره دام وه
۲۸ او مدیانیان د بني اسرائیل د وړاندِ په زنګنونو شول او بیا ئې ۲۸
خپل سرونه پورته نه کړل او د جدعون په ورځو کښ څلوېښت
کاله زمکه په قرار وه
۲۹ او یربعل ځوي د یوآس لاړ شه او په خپل کور کښ ۲۹
اوسیده ۳۰ او د جدعون اویا ځامن وو چه د ده له ښت نه ۳۰
راوتلي وو ځکه چه ده ډېرې ښځې لرلې ۳۱ او هغې سرېتې د ده په ۳۱
شکیم کښ ده لره ئې زوي و زېږاوه او د هغه نوم ئې ابي‌مالک کینښود
۳۲ او جدعون زوي د یوآس په ښه زوړوالي کښ مړ شه او په ۳۲
قبر د یوآس پلار د ده په عفره د ابیعزر کښ ښخ کړي شه
۳۳ او پس له مرګ د جدعون داسي وشوه چه بني اسرائیل ۳۳
وګرزېدل او د بعلیم په پیروي کښ ئې زنا وکړه او بعل بریت ئې
خپل الله مقرّر کړ ۳۴ او بني اسرائیل خپل خداوند الله یاد نه کړ ۳۴
هغه چه دوي ئې د خپلو ټولو دښمنانو نه چه چاپېره ئې وو خلاص
کړل ۳۵ او د یربعل جدعون له کوره سره په موافق د هغو ټولو ۳۵
مهربانیو چه له اسرائیل سره ئې وکړي عمل و نه کړ ❖

# نهم باب

۱ او ابي‌مالک د یربعل ځوي شکیم ته د خپلي مور وروڼو ته ۱
ورغی او خبره ئې ورسره وکړه او ټوله خیلخانه د خپلي مور د پلار
د کور ئې جمع کړه او و ئې ویل ۲ چه تاسي اوس په غوږونو د ۲
ټولو اهل شکیم کښ خبره وکړئ چه تاسو لره کومه بهتره ده دا
چه په تاسي اویا سړي ټول د یربعل زامن حاکمي وکړي یا دا چه

یو سرِي په تاسو حاکِمي وکړِي او یاد کړئِ چه زه ستاسي هډونه
۳ اوغوښه یم ۳ نو دَده دَ مور ورونړو دَ شِکیم دَ ټولو خلقو په
غوږونو کښې دَده په باب دا ټولي خبري وویلي نو دَ هغو زړونه
په ابيمالک پسي مایل شول ځکه چه دوي وویل چه دي ځمونږه
۴ ورور دَي ۴ او ده ته ئې اویا مثقاله دَ سپینو زرو له بیتِ بعل بریث
ورکړل نو ابيمالک څو لوندان او خوشي سړِي کراها اخستل او هغوي
۵ وروسي شول ۵ بیا په عفره کښې دَ خپل پلار کور ته ورغي او خپل
ورونړه دَ یرُبعل زامن اویا سره ئې په یوه کاڼِي قتل کړل مګر
یوتام دَ یرُبعل وروکی زوي پاتي شه ځکه چه هغه خپل ځان
پټ کړ

۶ ۶ او ټول خلق دَ شِکیم او ټول دَ مِلو تبر راجمع شول
او لاړل او ابيمالک ئې دَ هغي بلوط ستني څنګه چه په شِکیم کښې
۷ وه بادشاه کړ ۷ او هغوي یوتام خبر کړ او دَي لاړ شه او دَ ګریزیم
په سر باندِ ودریده او آواز ئې پورته کړ ورته ئې وویل چه اي
۸ دَ شِکیم خلقو ځما واورئِ تاچه الله ستاسو واورِي ۸ یووار ونې
لاړلي تاچه یو بادشاه په خپلو کښې مسح کړي نو هغوي زیتون ته
۹ وویل چه ته په مونږ بادشاهي وکړه ۹ نو هغوي ته زیتون وویل
چه زه خپل غوړوالي چه دَ هغو په وسیلي سره ئې الله او سړِي
۱۰ عزّت کوِي پرېږدم څه ؟ او لاړه شم چه په ونو وزنګیږم ۱۰ بیا ونو
۱۱ انځیر ته وویل چه ته راشه په مونږ بادشاهي وکړه ۱۱ نو انځیر ور
ته وویل چه زه خپل خوږوالي اوخپله ښه میوه پرېږدم څه ؟
۱۲ او لاړ شم چه په ونو وزنګیږم ۱۲ او ونو انګور ته وویل چه
۱۳ ته راشه په مونږ بادشاهي وکړه ۱۳ نو انګور هغو ته وویل چه زه
خپله شیره چه الله او سړِي ئې خوښوي پرېږدم څه ؟ او لاړ شم
۱۴ چه په ونو وزنګیږم ۱۴ بیا ټولو ونو کرکنړي ته وویل چه ته راشه

او په سونې بادشاهي وکړه ۱۵ نو کرکنړي ونو ته ووئيل چه که تاسي ۱۵
په رښتيا سره ما په خپل ځان بادشاه سحح کوئ نو راشئ ځما تر
سوري لاندي پناه ونيسئ او که نه نو له کرکنړي نه به اور ووزي
او له لبنان لمنځي به ونغړي ۱۶ نو اوس که چري تاسي دا په حق ۱۶
او په کامليت سره کړي وي چه ابي‌مالک مو بادشاه مقرر کړي دي
او که تاسو له يربعل او دده له کور سره ښه کړي وي او که تاسي
د هغه د لاسونو د کار په موافق کړي وي ۱۷ ځکه چه ځما پلار ستاسو ۱۷
دپاره وجنګيده او په خپل ځان ئي خطره واخسته او تاسي ئي د
مديان له لاس خلاص کړئ ۱۸ او تاسي نن ځما د پلار په کور حمله ۱۸
وکړه او دده زامن اويا سړي مو په يوه کاڼي قتل کړل او ابي‌مالک
زوي د وينځي دده مو د شکيم په خلقو کښ بادشاه کړ ځکه چه
هغه ستاسي ورور دي ۱۹ نو که تاسي په حقه او په کامليت سره ۱۹
له يربعل او دده له کوره سره په دي ورځي کښ عمل کړي دي
نو تاسو په ابي‌مالک خوشحالي کوئ او هغه د هم په تاسي خوشحالي
کوي ۲۰ او که نه نو له ابي‌مالک نه به اور ووزي او د شکيم خلق ۲۰
او د ملو تبر به ونغړي او د شکيم له خلقو او د ملو د تبر نه
به اور ووزي او ابي‌مالک به ونغړي ۲۱ بيا يوتام وزغليده او وتښتيده ۲۱
او بير ته لاړ او هلته کښ اوسيده د ابي‌مالک دده د ورور
له ويري نه

۲۲ نو ابي‌مالک په اسرائيل دري کاله سرداري وکړه ۲۲
۲۳ نو الله يو بد روح د ابي‌مالک او د شکيم د خلقو په مينځ کښ ۲۳
واستاوه او د شکيم خلقو له ابي‌مالک سره ټګي وکړه ۲۴ تا چه ۲۴
د يربعل د اويا زامنو ظلم راشي او چه د هغو خون په ابي‌مالک
د هغو په ورور چه هغوي ئي قتل کړل او د شکيم په خلقو چه
دده لاسونه ئي دده د ورونړو د قتلولو دپاره مضبوط کړل راکاږلي

۲۵ ښِني ۲۵ نو دَ شِکیم خلقو دَ غرونو په سر ده ته څو کسان په پسولي
کښې کینول او هغو به هر هغه څوک شوکول چه په لاري کښې
به پرِ تیریدل او اِبي‌مالک ته خبر ورکړي شه
۲۶ ۲۶ او جعل دَ عابد ځوي له خپلو ورونړو سره لاړ او شِکیم
۲۷ ته پوري شه او دَ شِکیم خلقو په ده اعتبار وکړ ۲۷ او هغوي
پټيِ ته ووتل او دَ هغو تاکستانونو ئي وشوکول او و ئي مړل
او خوښيِ ئي جوړه کړه او دوي دَ هغو دَ خدایانو کور ته ننه وتل او
۲۸ و ئي خوړل او و ئي ښکنځل او په اِبي‌مالک ئي لعنت وکړ ۲۸ نو جعل
دَ عابد ځوي ووېل چه اِبي‌مالک څوک دَي او شِکیم څوک چه مونږ
ئي خدمت وکړو هغه دَ یربعل ځوي نه دي څه ؟ او زبول دَ هغه
حاکم نه دَي څه ؟ تاسې دَ حمور ابي‌شِکیم دَ سړو خدمت کوئِ لیکن
۲۹ مونږ به ئي ولې کوو ۲۹ کاشکِي چه دا خلق زما په لاس وَي نو ما
به اِبي‌مالک لري کړي وه او اِبي‌مالک ته ئي ووېل چه ته خپل لښکر
۳۰ ډیره کړه او ووزه ۳۰ او هرکله چه زبول سردار دَ ښهر دَ جعل دَ ځوي
۳۱ دَ عابد خبره واوریدله نو دَ هغه غضب ګرم شه ۳۱ او قاصدان
ئي اِبي‌مالک ته په ټګئِ سره واستول وه ئي وې ګوره جعل دَ عابد
ځوي او ورونړه ئي شِکیم ته راغلل او ګوره چه دوي هغه ښهر
۳۲ ستا په مخالفت لمسوِي ۳۲ اوس دَ شپي ته او هغه خلق چه له
۳۳ تا سره دي پورته شئِ او په پټيِ کښې پسولي وکړئِ ۳۳ او داسې
به وشي چه صبا چه نمر خیژي وقتي به پورته شئِ او په ښهر به
حمله وکړئِ او ګوره چه هغه او هغه خلق چه ورسره دي تا ته
به دروزيِ نو ته به له هغو سره دَ خپل لاس دَ وَس په
موافق وکړي.
۳۴ ۳۴ نو اِبي‌مالک او هغه ټول خلق چه ورسره وُو دَ شپي
پورته شول او شِکیم ته ئي په څلورو ډلو پسولي وکړه ۳۵ نو

جعل دَ عابد څوي ووت او دَ ښهر دَ دروازي په مدخل کښ
ودريده او ابي مالک او هغه خلق چه ورسره وُو له پسوني نه
پورته شول ٣٦ او جعل چه هغه خلق وليدل نو زبول ته ئي ٣٦
وويل گوره خلق دَ غرونو له سرونو راکوزيږي نو زبول ورته
وويل چه ته دَ غرونو سوري دَ سړو په شان وينې ٣٧ بيا ٣٧
جعل خبره وکړه وئي ويل گوره خلق چه دَ زمکي له مينځ نه راکوزيږي
او يوه ډله دَ معونيم دَ بلوط په لاري راځي ٣٨ نو زبول ورته وويل ٣٨
چه اوس دِ هغه خوله چرته دَه چه پرويل دي چه ابي مالک څوک
دَي چه مونږ ئي خدمت وکړو دا هغه خلق نه دي څه ؟ چه تا ئي
سپکه وکړه اوس ووزه ورسره وجنګيږه ٣٩ نو جعل ووت دَ شکيم ٣٩
دَ خلقو دَ وړاندِ او له ابي مالک سره وجنګيده ٤٠ نو هغه ابي مالک ٤٠
وتښتاوه او دَده له مخه وتښتيده او ډير ژوبل شوي پريوتل دَ
دروازي تر مدخل پوري ٤١ نو ابي مالک په آرومه کښ واوسيده ٤١
او زبول جعل او دَده ورونړه ئي دَ شکيم له تمکيدلو وشړل ٤٢ او ٤٢
په صبا کښ داسي وشوه چه خلق ميدان ته ووتل او ابي مالک
ته ئي بيان وکړ ٤٣ او ده قوم واخست او په دريو ډلو ئي ووېشل ٤٣
او په ميدان کښ ئي پسوني وکړه او کتل ئي او گوره چه هغه خلق
له ښهره ووتل نو دوي پر ودريدل او وئي وهل ٤٤ او ابي مالک ٤٤
او هغه ډلي چه ورسره وي په وړاندِ تير شول او دَ ښهر دَ دروازي
په مدخل کښ ودريدل او هغه دوه ډلي په هغو ټولو چه په
ميدان کښ وُو پريوتلي او هغوي ئي ووهل ٤٥ او ابي مالک هغه ٤٥
ټوله ورځ له ښهره سره وجنګيده او ښهر ئي واخست او هغه
خلق چه په کښ وُو مړه ئي کړل او ښهر ئي ونړاوه او مالګه ئي
په کښ وکرله

٤٦ او ټولو خلقو دَ شکيم دَ برج چه ئي واوريدل نو هغوي ٤٦

۴۷ دَ اَلبَرِیتَ دَ مندر بُرج ته ننه وتل ۴۷ نو اِبِيمَالِک ته خبر ورکړي
۴۸ شه چه دَ شِکِیم دَ بُرج ټول خلق جمع شوِي دِي ۴۸ نو اِبِيمَالِک
دَ صلمون غره ته وخوت دی او هغه ټول خلق چه ورسره وُو او
اِبِيمَالِک تبر په خپل لاس واخست او له ونو ئې یو شاخ پرېکړ
او پورته ئې کړ او په خپلي اوږي ئې کېښود او هغو خلقو ته چه
ورسره وُو وئې ویل هغه څه چه تاسي ولیدل چه ما وکړل بیړه
۴۹ ځما په شان وکړئ ۴۹ نو ټولو خلقو هم پرېکړهرسړي خپل شاخ او په
اِبِيمَالِک پسي تلل او هغه ئې په بُرج کېښول او هغه بُرج ئې په اور
وِسوزاوه نو دَ شِکِیم دَ بُرج ټول خلق په قدر دَ یو زر سړي او
ښځي مړه شول
۵۰ ۵۰ بیا اِبِيمَالِک تیبِض ته لاړ او په تیبِض کښې ډېره شه
۵۱ او هغه ئې ونیوه ۵۱ او دَ ښهر په مینځ کښې یوقایم بُرج وه او هغه
ته ټول سړِي او ښځي او ټول دَ ښهر خلق وتښتیدل او ځان
۵۲ پسي ئې بند کړ او دَ بُرج بام ته وختل ۵۲ نو اِبِيمَالِک بُرج ته
ورغي او ورسره وجنګیده او دَ بُرج دروازي ته نزدي شه چه
۵۳ په اور ئې وسیزي ۵۳ نو یوي ښځي دَ مېچني پاسني پل دَ اِبِيمَالِک
۵۴ په سر را واچوه او دَ ده کُکرئ ئې ماته کړه ۵۴ نو اِبِيمَالِک په تلوارسره
هغه هلک چه دَ ده وسله وړونکیَ وه را و باله ورته وئې ویل
چه خپله تُوره وکاږه او مړ م کړه تا چه ځما په حق کښې خوک
ونه وائي چه یوي ښځي مړ کړ نو دي هغه ځوان وواهه او مړ شه
۵۵ ۵۵ او چه دَ اسرائیل سړیو ولید چه اِبِيمَالِک مړ شه نو هر یو
۵۶ خپل ځای ته لاړ ۵۶ نو الله دَ اِبِيمَالِک شرارت چه له خپل پلار
۵۷ سره ئې دَ خپلو اویا وروڼو په قتلولو ئې کړي وه ور وګرزاوه ۵۷ او
ټول شرارت دَ شِکِیم دَ خلقو الله دَ دوي په سرونو ور وګرزاوه او په
دوي باندِ لعنت دَ یوتام زوي دَ یُربعل راغيَ ٭

# لسم باب

۱ آ او پس له ابي‌مالک دَ اسرائیل دَ خلاصولو دَپارَ تولع زوي دَ
فواه زوي دَ دودو سړي له یسّاکر پورته شه چه په شامیر دَ
۲ افرائیم په کوهستان کښ اوسیده ۲ نو په اسرائیل ئي په دروېشت
کاله قضیٔ وکړه او مړ شه او په شامیر کښ ښخ کړي شه
۳ ۳ بیا پس له هغه یائیر جلعادي پورته شه او په اسرائیل
۴ ئي دوویشت کاله قضا وکړه ۴ او دَ هغه دېرش زامن وُو چه په
دېرشو خرکیو به سوریدل او دَ دوي دېرش ښهرونه وُو چه حَوُوث
یائیر ئي تر دي ورځي پوري بولي دغه دَ جلعاد په زمکه کښ دِي
۵ ۵ او یائیر مړ شه او په قامون کښ ښخ کړي شه
۶ ۶ او بیا بني‌اسرائیل دَ خداوند په سترګو کښ شرارت وکړ
او دَ بعلیم او دَ عشتاروت عبادت ئي وکړ او دَ آرام دَ خدایانو
او دَ صیدون دَ خدایانو او دَ موآب دَ خدایانو او دَ بني‌عمون
دَ خدایانو او دَ فلسطینیانو دَ خدایانو او دوي خداوند ترک کړ
۷ او دَده عبادت ئي ونه کړه ۷ نو دَ خداوند غضب په اسرائیل ګرم
شه او دوي ئي دَ فلسطینیانو په لاس او دَ بني‌عمون په لاس کښ
۸ خرخ کړل ۸ نو هغوي بني‌اسرائیل په دغه کال کښ وآزارول او
تنګ ئي کړل تر اتلسو کالو پوري هغه ټول بني‌اسرائیل چه په پوري
غاړه دَ یردن کښ وُو دَ اموریانو په زمکه کښ چه په جلعاد کښ
۹ دَه ۹ او بني‌عمون له یردن نه پوري وتل چه دوي له یهودا سره او
له بنیامین سره او دَ افرائیم دَ کور سره هم جنګ وکړي نو
۱۰ اسرائیل ډیر تنګ شه ۱۰ نو بني‌اسرائیلو خداوند ته فریاد وکړ
وئي ویل چه مونږ ستا خطا کړي ده ځکه چه مونږ خپل الله ترک
۱۱ کړ او دَ بعلیم عبادت مو وکړ ۱۱ نو خداوند بني‌اسرائیل ته وویل

چه تاسې مِصر له مصريانو او له اموريانو او له بني عمونه او له
۱۲ فلسطينيانو نه خلاص نه کړئ څه؟ ۱۲ او صيدونيانو او عماليقيانو
او معونيانو تاسې تنګ کړئ او تاسې ما ته فرياد وکړ او ما تاسې
۱۳ دَدوي له لاسونو نه خلاص کړئ ۱۳ او تاسو زه پرېښودلم او دَ
نورو خدايانو عبادت مو وکړ دې دَپاره به مو بيا خلاص نه کړم
۱۴ ۱۴ لاړ شئ او هغو خدايانو ته چه تاسو غوره کړي دي فرياد
۱۵ وکړئ چه هغه مو دَ تنګسيا په زمانه کښې خلاص کړي ۱۵ نو
بني اسرائيلو خداوند ته وويل مونږ خطا وکړه نو هر څه چه ستا
په سترګو کښې ښه وي له مونږ سره ئې وکړه تش نن ورځ مونږ
۱۶ خلاص کړه ۱۶ او دوی بيګانه خدايان له خپل مينځ نه لرې کړل او
دَ خداوند عبادت ئې وکړ او دَ هغه ځان دَ اسرائيل دَ خوارئ په
سبب تنګ شه

۱۷ ۱۷ نو بني عمون جمع شول او په جلعاد کښې ئې ډېره وکړه او
۱۸ بني اسرائيل هم جمع شول او په مصفاه کښې ډېره شول ۱۸ نو خلقو
دَ جلعاد سردارانو يو تر بله وويل هغه کوم سړی دې چه دَ
بني عمون سره به په جنګ شروع وکړي نو هغه به دَ ټولو اوسېدونکو
دَ جلعاد سردار شي ٭

# يولسم باب

۱ ۱ او يفتاح جلعادي قوت ناک بهادر وه او هغه دَ يوې زانيې
۲ ښځې زوی وه او جلعاد يفتاح وزېږاوه ۲ او دَ جلعاد ښځې هغه
له زامن وزېږول او چه دَ هغې ښځې زامن لوی شول نو يفتاح ئې
وشاړه ورته وئې ويل چه ته به څمونږ دَ پلار په کور کښې ميراث
۳ وانه خلې ځکه چه ته دَ بلې ښځې ځوی يې ۳ نو يفتاح دَ خپلو
ورونړو له مخې نه وتښتېده او دَ طوب په زمکه کښې اوسېده

او يفتاح ته خوشي سري ورجمع شول او هغوي به له ده سره
وتل
۴ تم او پس له څو ورځو داسي وشوه چه بني‌عمون له اسرائيل
۵ سره وجنگيدل ۵ او هرکله چه بني‌عمون له اسرائيل سره وجنگيدل
نو دَ جلعاد سپين‌ږيري لاړل چه دَ طوب له زمکي نه يفتاح راولي
۶ ۶ او يفتاح ته ئي وويل راشه او څمونږ سردار شه نو مونږ
۷ به له بني‌عمون سره جنگ وکړو ۷ نو يفتاح دَ جلعا سپين‌ږيرو ته
وويل چه تاسي له ما سره کينه ونه کړه څه؟ او دَ خپل پلار
له کوره مو ونه شړلم څه؟ اوس ولي ما ته راغلي يئ چه تاسو
۸ په تنگسيا کښ يئ ۸ نو دَ جلعاد سپين‌ږيرو يفتاح ته وويل چه
مونږ دي دَپارَ اوس تا ته راوگرزيدلو چه ته له مونږ سره لاړ
شي او له بني‌عمون سره وجنگيږي او ته به مو سردار شي په ټولو
۹ اوسيدونکو دَ جلعاد ۹ نو يفتاح دَ جلعاد سپين‌ږيرو ته وويل
که چري تاسي مِ دَ بني‌عمون دَ جنگ کولو دَپارَ وگرزوئ او چه
څما دَ وړاندِ خداوند هغوي ستاسي په مخ کښ درکړي نو زه به
۱۰ مو سردار شم څه؟ ۱۰ نو دَ جلعاد سپين‌ږيرو يفتاح ته وويل
چه خداوند دِ څمونږ په مينځ کښ آوريدونکي وي که مونږ ستا
۱۱ دَ خبري په موافق هسي ونه کړو ۱۱ نو يفتاح دَ جلعاد دَ سپين‌ږيرو
سره لاړ شه او خلقو په خپلو څانونو سردار او حاکم مقرر
که نو يفتاح خپلي ټولي خبري په مصفاه کښ دَ خداوند دَ
وړاندِ وکړي
۱۲ ۱۲ نو يفتاح دَ بني‌عمون بادشاه ته قاصدان واستول ويل
ئي چه ستا له ما سره څه دي چه ته څما په زمکه کښ ما ته
۱۳ دَ جنگ دَپارَ راغلي يي ۱۳ او دَ بني‌عمون بادشاه دَ يفتاح قاصدانو
ته وويل چه اسرائيل څما زمکه اخستلي دَه هغه وخت چه له

مصرَ را وختل له ارنونه تر يبوقَ او تر يردنَ پوري نو اوس ئې
۱۴ په سلامتيا سره بيرته را وګرزوه ۱۴ او يفتاح بيا هم دَ بني‌عمونَ
۱۵ بادشاه ته قاصدان واستول ۱۵ ورته ئې وويل چه يفتاح داسې
وائي چه اسرائيل دَ موآب زمکه او نه دَ بني‌عمونَ زمکه اخستلې دَه
۱۶ ۱۶ څکه هغه وقت چه دوي له مصرَ وختل او اسرائيل
په بيابان کښ ګرزيدل تر بحر قلزم پوري او قادش ته راغلل
۱۷ ۱۷ نو اسرائيل دَ ادوم بادشاه ته قاصدان واستول وئې ويل پرېږم
پرده چه ستا په زمکه کښ تير شم نو دَ ادوم بادشاه وانه وريدل
او دَ موآب بادشاه ته ئې هم واستول او هغه و نه منل او
۱۸ اسرائيل په قادش کښ اوسيدل ۱۸ او په بيابان کښ به تلل
او دَ ادوم په زمکه او دَ موآب په زمکه چاپيره وګرزيدل او له نمرخاته
نه دَ موآب زمکي ته راغلل او دَ ارنون په پوري غاړه ډيره شول
او دَ موآب سرحد ته را نه غيَ څکه چه ارنون دَ موآب سرحد وه
۱۹ ۱۹ بيا اسرائيل دَ اموريانو بادشاه صيحون ته قاصدان واستول چه
دَ حشبون بادشاه وه او اسرائيل ورته وويل چه پرېږي مو پرده
۲۰ چه ستا په زمکه کښ خپل ځاي ته تير شو ۲۰ او صيحون دَ
اسرائيل اعتبار و نه کړ چه دَده په سرحد کښ تير شي بلکه
صيحون خپل ټول خلق جمع کړل او په ياهيځ کښ ئې ډيره وکړه او
۲۱ دَ اسرائيل سره وجنګيده ۲۱ نو خداوند الله دَ اسرائيل صيحون
او دَده ټول خلق ئې دَ اسرائيل په لاس کښ ورکړل او هغوي
ئې ووهل او اسرائيل دَ اموريانو ټوله زمکه چه دَ هغې زمکي
۲۲ اوسيدونکي وُو په ميراث واخستله ۲۲ او دَ اموريانو ټول حدونه
ئې په قبضه کښ کړل له ارنونَ تر يبوقَ پوري او له بيابانه تر
۲۳ يردنه پوري ۲۳ او اوس خداوند الله دَ اسرائيل اموريان دَده
دَ امّت اسرائيل له مخه له ويرانتَ ويستلي دِي نو ته به هغه

په ميراث واخلي څه؟ ٢٤ هغه چه تا ته ستا خداي کموش تا له په ٢٤
ميراث سره درکوي نو ته به ئي په ميراث وانه خلي څه؟ او هغه
ټول چه څموږ خداوند الله څموږ له مخه له ميراثه وېستلي
دي هغه به په ميراث واخلو ٢٥ نو اوس ته له بالاق دَ صفور ٢٥
دَ ځوي بادشاه دَ موآب نه بهتر ئي څه؟ هغه له بني‌اسرائيل سره
جګړه کړي ده څه؟ او يا په جنګ ورسره جنګيدلی دي څه؟ ٢٦ هر کله ٢٦
چه اسرائيل و دريده په حشبون او دَ هغو په کليو کښې او په
عروعير او دَ هغو په کليو کښې او په هغو ټولو کليو کښې چه
دَ ارنون په څنګ کښې دي درې سوه کاله نو تا ولي په دې مودې
کښې بيرته و نه نيول ٢٧ او ما له تا سره خطا کړې نه ده ليکن ٢٧
ته بدي راسره کوي چه ته جنګ راسره کوي نو هغه خداوند چه
عادل دي نن ورځ دِ دَ بني‌اسرائيل او دَ بني‌عمون په مينځ کښې
انصاف وکړي ٢٨ او دَ عمون بادشاه دَ يفتاح خبرې چه ورليږلي ئې ٢٨
وې وانه وريدلې

٢٩ او دَ خداوند روح په يفتاح باندِ وه نو جلعاد ته ٢٩
او منسّي ته پورې شه او مصفاه ته دَ جلعاد پورې شه او له مصفاه
دَ جلعاد نه بني‌عمون ته پورې شه ٣٠ او يفتاح دَ خداوند نذر ٣٠
ومانه و ئي ويل چه که ته بني‌عمون خما په لاس کړلو سره راکړې ٣١ نو ٣١
هغه وتونکي چه خما دَ کور له دروازې نه ما ته دَ استقبال دَ پاره
راووزي هغه وقت چه زه په سلامتيا سره له بني‌عمون نه راوګرزم
دَ خداوند به وي او زه به ئي سيزونکي قرباني وخيژوم ٣٢ بيا ٣٢
يفتاح بني‌عمون ته دَ جنګ کولو دَ پاره پورې شه او هغه خداوند
دَ ده په لاس کښې ورکړل ٣٣ نو هغوي ئي له عروعير نه ستا ٣٣
دَ راتلو تر منيّت شل ښهرونه او تر آبل کراميم پورې په ډېرې
لوې وهنې سره ووهل نو بني‌عمون دَ اسرائيل دَ وړاندِ زليل شه

٣٤ ٣٤ بیا یفتاح مصفاه ته خپل کورته راغئ او کوره چه دده
لور دده دَ ملاقات دپارَ له طنبلونو او په گډېدلو سره راوتلي وه
٣٥ او هغه ئي یو ځړي وه بي له هغې ئي نه زوي وه او نه لور ٣٥ او
داسي وشوه هرکله چه ده هغه ولیدله نو جامي ئي څیري کړي وئي
ویل هاي اي ځما لورې تا زه نهایت ذلیل کړم او ته ځما دَ ربړونکو
له مېنځَ يي ځکه چه ما خپله خوله خداوند ته پرانتله او ور نه
٣٦ گرزېدلیَ نه شم ٣٦ نو هغي ورته وویل چه اي ځما پلاره تا خپله
خوله خداوند ته پرانتلي دَه نو له ما سره هسي وکړه لکه چه ستا له
خولي نه وتلي دي په دي چه خداوند تا له ستا له دښمنانو بنيعمون
٣٧ نه بدله واخستله ٣٧ بیا ئي خپل پلار ته وویل چه ته له ما
سره دا خبره وکړه چه ما دوه میاشتي پرېږده نو زه به لاړه شم او
په غرونو کښي به وگرزم او په خپل پېغلتیا نه به وژاړم زه او ځما
٣٨ سوهیلئِ ٣٨ نو هغه وویل چه لاړه شه او تر دوو میاشتو پوري
ئي واستوله نو هغه لاړله او دَدي سوهیلئِ او په خپل پېغلتیا نه
٣٩ ئي په غرونو کښي وژړل ٣٩ او چه دوه میاشتي پوره شوي نو هغه
خپل پلار ته راوگرزېدله او هغه په دي هغه نذر چه منلي ئي وه
وکړ او دي سړي پېژاندلیَ نه وه نو دا په اسرائیل کښي عادت شه
٤٠ بم چه دَ اسرائیل لونړه به کال په کال تللي چه دَ یفتاح جلعادي
دَ لور وير وکړي څلور ورځي په کال کښي ❊

# دولسم باب

١ ١ او دَ افرائیم سړي جمع شول او دَ شمال په لوري تېر شول
او یفتاح نه ئي وویل چه څه دپارَ دَ بنيعمون جنگ ته پوري شوي
او مونږ دِ ونه بللو چه درسره تللي وَې نو اوس به ستا کور په
٢ تا پاندي په اور وسېزو ٢ نو یفتاح هغو ته وویل چه ځما او ځما

دَ خلقو دَ بنيِ‌عمون سره سخته جګړه وه او تاسو ته مې چغې وکړې
او تاسي دَ هغو له لاسَ خلاص نه کړم ٣ او چه ما وليدل چه زه ٣
مو خلاص نه کړې نو ما خپل ځان په خپل ورغوي کښ کيښود او
بنيِ‌عمون ته پوري وتلم او خداوند هغوي ځما په لاس کښ راکړل
نو اوس تاسي نن ورځ څه دَپارَ په ما را وختلئِ چه جنګ را سره
وکړئِ ٤ نو يفتاح ټول سړي دَ جلعاد جمع کړل او له افرائيم سره ٤
وجنګيدل او دَ جلعاد سړو افرائيم وواهه ځکه چه هغوويل
چه تاسي دَ افرائيمَ تښتيدونکي يئِ جلعاد دَ افرائيم او دَ منسّي په
منځ کښ دي ٥ نو جلعاديانو دَ يردن ګُدرونه چه دَ افرائيم په طرف ٥
وُو ونيول او داسي وشوه چه دَ افرائيم تښتيدونکيو به ويل چه پري
مو بدئِ چه پوري شم نو دَ جلعاد سړو به ورته ويل چه ته
افرائيمي يې نو که هغه به وويل چه نه ٦ نو دوي به ورته ويل چه ٦
نه ووايه چه شبولت نو هغه به ويل سبولت ځکه چه هغه ويلي
نه شه چه صحيح ئې ووايي نو دوي به ونيوه او دَ يردن په ګُدرونه
به ئې ووازه نو په دغه وقت کښ له افرائيم نه دوڅلوېښت زره
پريوتل

٧ او يفتاح دَ اسرائيل قضئ شپږ کاله وکړه او جلعادي ٧
يفتاح مړ شه او دَ جلعاد په يوه ښهر کښ ښخ کړې شه

٨ او پس له هغه نه دَ اسرائيل دَپارَ ابصان دَ بيت‌لحم ٨
قضئ وکړه ٩ او دَ هغه ديرش زامن وُو او ديرش لونړه چه ده بهر ٩
راستولي او له بهر نه ئې ديرش لونړه دَ خپلو زامنو دَپارَ راوستلي
او دَ اسرائيل ئې اوه کاله قضئ وکړه ١٠ او ابصان مړ شه او په ١٠
بيت‌لحم کښ ښخ کړې شه

١١ او پس له هغه دَ اسرائيل قضئ ايلون زبولوني وکړه دَ ١١
اسرائيل ئې لس کاله قضئ وکړه ١٢ او ايلون زبولوني مړ شه او په ١٢

ایالون کښې دَ زبولون په زمکه کښې ښخ کړې شه
۱۳ ۱۳ او پس له هغه دَ اسرائیل عبدون دَ هلیل ځوي فرعاتوني
۱۴ قاضي شه ۱۴ او دَ هغه څلوېښت زامن وُو او دیرش نمسي چه په
اویا خرکیو به سوریدل او هغه دَ اسرائیل قضئ اته کاله وکړه
۱۵ ۱۵ او عبدون زوي دَ هلیل فرعاتوني مړ شه او په فرعاتون کښې
دَ افرائیم په زمکه کښې دَ عمالیق په کوهستان کښې ښخ کړې شه ❊

# دیارلسم باب

۱ ۱ او بیا بني اسرائیل دَ خداوند په سترګو کښې شرارت وکړ نو
خداوند هغوي دَ فلسطینیانو په لاس ورکړل تر څلوېښتو کالو
پورې
۲ ۲ او دَ صُرعه یو سړې وه دَ دانیانو له خېلخانې نه چه نوم
۳ ئې منوح وه او ارتینه ئې شنده وه چه لنګه شوي نه وه ۳ او
دَ خداوند فرښته ښځې ته ښکاره شوه ورته وئې ویل چه ګوره
ته شنده یې لنګه شوي نه یې لیکن ته به حامله شې او زوي به
۴ وزیږوې ۴ نو اوس خبردار شه او شراب مه څښه او نه بله نشه
۵ او نه څه ګنده شې خوره ۵ نو ګوره ته به حامله شې او زوي به
وزیږوې او دَ هغه په سر به پاکي پورته نه شي ځکه چه هغه هلک
به دَ مور له ګېډې نه نذیر دَ الله وي او هغه به شروع وکړي
۶ چه اسرائیل دَ فلسطینیانو له لاس نه خلاص کړي ۶ نو هغه
ښځه لاړه او له خپل سړي سره ئې خبره وکړه وئې ویل چه ما ته
یو سړې دَ الله راغې او شکل ئې لکه شکل دَ الله دَ فرښتي ډېر
هیبتناک وه لیکن ما له هغه نه پوښتنه و نه کړه چه ته له کومه
۷ یې او نه هغه ما ته خپل نوم را وښود ۷ او ما ته ئې وویل چه ګوره
ته به حامله شې او زوي به وزیږوې او اوس به نه شراب څښې

او نه نشه او نه به ګنده شَي خوري ځکه چه هغه هلک به دَ
۸ سور له ګیدېي نه دَ مرګ تر ورځي پوري دَ الله نذیر وِي ۸ نو منوحَ
خداوند ته دُعا وکړه و ئي ویل اي خاوندَ زه تا ته زارِي کوم
چه هم داسي دِ مونږ ته سړي دَ الله راشِي هغه چه تا واستاوه
۹ چه مونږ له هغه هلک سره چه پیدا شِي څه وکړو ۹ نو الله دَ
منوحَ آواز واوریده او فرښته دَ الله بیا ښځي ته ورغله او دا
۱۰ په پټي کښ ناسته وه لیکن منوحَ دَ دي سړي ورسره نه وه ۱۰ او
ښځي تلوار وکړه او وزغلیده او خپل سړِي ته ئي بیان وکړ ورته
ئي وویل ګوره هغه سړَي چه ما ته په دي ورځي کښ راغيَ بیا را
۱۱ ښکاره شه ۱۱ نو منوحَ پورته شه او په ښځي پسي ته او هغه
سړِي ته ورغيَ ورته ئي وویل چه ته هغه سړي يِي چه له ښځي
۱۲ سره دِ خبره وکړه ده وویل زه یم ۱۲ نو منوحَ وویل هرکله چه
۱۳ ستا خبره راشِي نو دَ هغه هلک دستور او کار به څه وِي ۱۳ نو
فرښتي دَ خداوند منوحَ ته وویل چه هرڅه چه ما ښځي ته ویلِي
۱۴ دِي نو دا دِ ئي وساتِي ۱۴ له هر هغه څه چه له تاک نه وزِي نه
دِ ئيَ خورِي او شراب او نشه دِ نه څښِي او هیڅ ګنده دِ نه خورِي
۱۵ له هر هغه څه چه ما ورته حکم وکړ و دِ ساتِي ۱۵ نو منوحَ
فرښتي دَ خداوند ته وویل مونږ دِ تم کړو که نه چه ستا دَ پارَ
۱۶ دَوزِي سیرلِيَ تیار کړُو ۱۶ نو فرښتي دَ خداوند منوحَ ته وویل که
ته مِ تم کوئِ نو زه به ستا له ډوډِئ نه و نه خورم او که ته
سیزونکي قربانِي کوي نو خداوند له ئي وخیژوه ځکه چه منوحَ
۱۷ نه پوهیده چه دا دَ خداوند فرښته ده ۱۷ نو منوحَ دَ خداوند
فرښتي ته وویل چه ستا نوم څه دیَ ولي هرکله چه ستا خبره
۱۸ راشِي نو مونږ به دِ عزّت وکړُو ۱۸ نو فرښتي دَ خداوند ورته وویل
۱۹ چه ځما دَ نوُم پوښتنه ځله کوي او هغه عجیبه دیَ ۱۹ نو منوحَ ا

وزي سيرلي او دَ نذر هديه واخستل او په كټ ئي خداوند
ته وخيژول او هغه عجب كار وكه او منوحَ او ښځي ئي كتل-
۲۰ ۲۰ او داسي و شوه هركله چه لمبه له مذبح دَ آسمان په لوري وخته
نو فرښته دَ خداوند په لمبي دَ مذبح كښں وخته او منوحَ او
۲۱ ښځي ئي كتل نو دوي پرمخي په زمكي پريوتل ۲۱ او بيا فرښته دَ خداوند
منوحَ او دَده ښځي ته ښكاره نه شوه نو منوحَ پوه شه چه دغه
۲۲ فرشته دَ خداوند وه ۲۲ نو منوحَ خپلي ښځي ته وويل چه مونږ به
په مرګ سره مړه شُو ځكه چه مونږ الله وليد نو ښځي ورته وويله
۲۳ ۲۳ چه كه دَ الله اراده وي چه مونږ مړه كړي نو ځمونږ له لاسه
به ئي سيزونكي قرباني او دَ هديي قرباني نه آخستل او نه به ئي
مونږ ته دا ټول راښكاره كړي وُو او نه به ئي داسي خبروته راته
۲۴ اوروِلي وُو ۲۴ نو هغي ښځي زوي وزيږوه او دَ هغه نوم ئي شمشون
۲۵ وباله او هغه هلك لوي شه او خداوند بركت وركړ ۲۵ او دَ
خداوند روح دَده په خوځولو شروع وكړه دَدان په ډيره كښں دَ
صرعه او دَ اشتاؤل په منځ كښں +

# څوارلسم باب

۱ ۱ او شمشون تمنه ته كوز شه او دَ فلسطينيانو له لوڼو نه ئي
۲ په تمنه كښں يوه ښځه وليدله ۲ نو دي وختت او پلار او مور ئي
خبر كړ و ئي ويل چه ما په تمنه كښں دَ فلسطينيانو له لوڼو نه
۳ يوه ښځه وليدله نو اوس هغه ما له په نكاح واخلئ ۳ او دَده پلار
او مور ورته وويل چه كنړه ستا دَ ورونړو په لوڼو كښں او ځمونږ
په ټول اُمّت كښں ښځه نشته څه؟ چه ته ځي چه له فلسطينيانو
نامختونو نه ښځه اخلي نو شمشون خپل پلار ته وويل چه هغه
۴ ځما دپارَ واخله ځكه چه هغه ځما په سترګو كښں خوښه ده ۴ او

د ده پلار او مور نه پوهیدل چه دا له خداونده ده ځکه چه ده
په فلسطینیانو باندې بو سبب لټاوه او په هغه وقت کښې فلسطینیانو
په اسرائیلو باندې حکومت کاوه
۵ نو شمشون او د ده پلار او مور تمنه ته کوز شول او ٥
د تمنه تاکستانونو ته راغلل او ګوره چه یو ځوان زمری د ده په
مخ کښې وغرمبیده ۶ نو د خداوند روح په ده باندې نازل شه او هغه ٦
يې څیری کړ لکه څیرول د سیرلي او په لاس کښې يې هیڅ شی
نه وه لیکن خپل پلار او مور لره يې په هغه کار چه کړي يې وه
خبر نه کړل ۷ نو دی کوز شه او له هغې ښځې سره يې خبره وکړه ٧
او هغه د شمشون په سترګو کښې ښه ښکاره شوه ۸ او پس له ٨
څو ورځو وګرزیده تا چه هغه واخلي او دی وګرزید چه د هغه
زمري لاش ووینې او ګوره چه د غلوزو سیل د زمري په کوډ کښې
وه او ګبینه ۹ نو هغه يې په خپل ورغوي کښې واخستل او تلّه او ٩
خوړلې او خپل پلار او مور ته ورغی او هغو ته يې ورکه او هغو
وخوړ او ور ته يې ښکاره نه کړ چه ده د زمري له کوډ ګبینه
راوړې وه ۱۰ او د ده پلار هغې ښځې ته ورکوز شه او هلته شمشون ١٠
میلمستیا وکړه ځکه چه ځوانانو به داسې کول ۱۱ او هرکله چه ١١
هغوی دی ولید نو هغو دیرش له آشنایانو حاضر کړل او هغوی
له ده سره وو ۱۲ او هغو ته شمشون وویل چه زه تاسو ته یوه ١٢
قصه دراچوم او که تاسو ما ته په اوو ورځو د میلمستیا کښې
راښکاره کړه او ورته ورسیږئ نو زه به دیرش قمیصونه درکوم
او دیرش جوړي جامې ۱۳ او که تاسو راته ښکاره نه کړی شوه نو ١٣
ما ته تاسې دیرش قمیصونه او دیرش جوړي جامې راکړئ او هغوی
ورته وویل چه ته خپله قصه واچوه نو موږ به يې واورو
۱۴ نو ده ورته وویل چه ١٤

له خوړونکيو خوراک ووت

او له قوت ناک خوږ والي ووت

نو هغوي نه توانيدل چه په دريو ورځو کښ هغه قصّه حل
١٥ کړي ۱۵ او داسي وشوه چه په اوومه ورځ کښ دوي دَ شمشون
ښځي ته وويل چه خپل سړَي وغولوه چه مونږ ته حپله قصّي
ظاهره کړي هسي نه چه تا او ستا دَ پلار کورَ به اور و سيزُو تا مونږ
١٦ را و بللُو چه لوټ سو کړي څه؟ ۱۶ نو دَ شمشون ښځي هغه ته
وژړل و ئي ويل چه ته له ما نه نفرت کوي او مينه راسره نه
کوي تا څما دَ قوم زامنو ته قصّي اچولي ده او ما ته دِ را و نه ښولَه
نو هغه دي ته وويل گوره ما خپل پلار او خپلي مور ته ښوولي
١٧ نه ده نو تا ته به ئي وښيم څه؟ نو هغي ده ته تر اوه ورځو پوري
چه په کښ دَ هغو ميلمستيا وه وژړل او په اوومي ورځ کښ ده
هغه خبر کړه ځکه چه دَي هغه تنگ کړَي وه او دي هغه قصّي
١٨ دَ خپل قوم زامنو ته ظاهره کړه ۱۸ او ده په اومي ورځي کښ له نمرپريوانه
نه وړاندي دَ خپل ښهر سړو ته وويل چه له گبينه به کُوم شي
زيات خوږ دَي او له زمري نه کوم قوت ناک دي نو ده هغو ته
وويل چه

که څما په سخوندري مو نه کړَي دَ يوي ساز

نو هيچري به مو موندلَي نه وه څما راز

١٩ ۱۹ نو دَ خداوند روح په ده باندي نازل شه او اشقلون ته
کوز شه او هلته کښ ئي ديرش سړي ورنه ووهل او لوټ
ئي واخست او هغه جوړي ئي دَ قصّي ښوونکيو ته ورکړي او
٢٠ دده غضب گرم شه او دَ خپل پلار کور ته وخوت ۲۰ او دَ
شمشون ښځه هغه ملگرِي لره چه ور سره ئي دوستي وه ورکړي
شوه ✣

# پنځلسم باب

١ او پس له څو مودي دَ غنمو دَ لَوُ په ورځو کښ داسي وشوه ١
چه شمشون دَ خپلي ښځي بازخواست وکړ دَ وزي په يوه سيرلي
سره او ده وويل چه زه خپلي ښځي ته دَ دي خوني ته ورننوزم
لیکن دَ هغي پلار نه پرينبوده چه ورننه وزي ٢ او دَ هغي پلار ٢
وويل چه ماخو وويل چه تا خو ورسره کينه وکړه نو ما ستا دوست
ته ورکړه دَ هغي وړوکي خور له دي نه ښانسته نه ده څه ؟
دَ هغي په عوض کښ دِ دغه ستا شي ٣ او شمشون ورته وويل ٣
چه زه اوس له فلسطينيانو نه بي الزامه يم چه زه له دوي سره
بد وکړم ٤ او شمشون لاړ او دري سوه گيدړان ئي ونيول او ٤
مشعلونه ئي واخستل اولکئ په لکئ ئي وتړل او مشعلونه ئي د
تولو دَ لکيو په سيخ کښ کينبودل ٥ او چه ئي مشعلونه په اور ٥
بل کړل نو دَ فلسطينيانو دَ ولاړو فصلونو په سيخ کښ ئي پرينبودل
نو پولي او ولاړ فصل او دَ زيتون باغونه ئي وسيزل ٦ نو ٦
فلسطينيانو وويل چه دا چا کړي دي نو دوي وويل چه شمشون
دَ تمني زوم ځکه چه هغه دده ښځه ونيوله او دَ هغه دوست
ته ئي ورکړه نو فلسطينيان وختل او هغه او دَ هغي پلار ئي
په اور وسيزل ٧ او شمشون ورته وويل چه که تاسي داسي ٧
وکړئ نو هم زه به بدله له تاسي واخلم نو بيا به پرېږدم
٨ او هغوي ئي په لينګو او په ورنونو په لويه وهني سره ووهل ٨
بيا کوز شه او دَ عطام دَ پرښي په چاود کښ اوسيده
٩ او فلسطينيان پورته شول او په يهودا کښ ديره شول
او په لحي کښ خواره شول ١٠ او دَ يهودا سړيو وويل چه تاسي ١٠
په موږ ولي راختلي يئ هغو وويل دي دَ پاره را وختلو چه

شمشون وتړو چه په ده داسي وکړو لکه چه په مونږ ئي کړي دي
١١ ١١ نو دري زر سړي له يهودا نه دَ عطام دَ پرښي وچاود ته ورغلل
شمشون نه ئي وويل چه نه خبر يي چه فلسطينيان په مونږ حاکمان
دي دا دِ په مونږ څه وکړل ده ور ته وويل لکه چه هغو له
١٢ ما سره وکړل هم هسي ما له دوي سره وکړل ١٢ نو دوي ور ته
وويل چه مونږ راکوز شوي يو چه تا و تړو او دَ فلسطينيانو
په لاس کښې دِ وسپارُو نو شمشون دوي ته وويل چه تاسي
١٣ ما ته قسم وکوئِ چه تاسي به په ما حمله نه کوئِ ١٣ هغو ور ته
خبره وکړه و ئي ويل چه هيڅري نه ليکن مونږ به دِ په تړلو وتړُو
او دَ دوي په لاس کښې به دِ و سپارُو او بيخي به دِ مړ نه کړُو نو
دوي هغه په دوو نويو رسيو وتاړه او له پرښي نه ئي وخيژاوه
١٤ ١٤ او چه لحي ته راغي نو فلسطينيانو دَده په مليا کيدلو شور وکړ
نو په ده دَ خداوند روح نازل شه نو هغه دوه رسئ چه
دَده په بازوګانو وي لکه سڼ په اور سيزلي شوي نو غوټي ئي له
١٥ لاسونو نه پرانتلي شوي ١٥ او ده دَ خره دَ ژامي نوي هډوکي
وموند او خپل لاس ئي اوږد کړ او وائي خست او په هغه ئي
١٦ زر سړي ووهل ١٦ نو شمشون وويل چه

ډيري په ډيري سره دَ خره په ژامي
وم وهل زر سړي دَ خره په ژامي

١٧ ١٧ او چه له دي خبري وزګار شه ژامه ئي له لاسه وويشتله
١٨ او دَ هغه ځاي نوم ئي رامت لحي و باله ١٨ بيا دَي ډير تږي شه
نو خداوند ته ئي فرياد وکړ و ئي ويل چه تا دَ خپل بنده په لاس
دا لوي خلاصون وکړ او اوس له تندي مرم او دَ نامختونو په
١٩ لاس کښې به پريوزم ١٩ نو الله هغه دَدَه چه په لحي کښې دي
څيري کړ او له هغي نه اوبه ووتلي او ده وڅښلي او روح ئي

را و گرزيده او هسي ژوندي شه دي دپارَ دَ هغه نوم عين‌هقورِي
٢٠ و باله هغه چه په لحيَ کښې دَی نو دي ورځي پوري ۞ او ده دَ
اسرائيلو حکم دَ فلسطينيانو په ورځو کښې شل کاله وکړ ۞

# شپاړسم باب

١ آبيا شمشون غزّه ته ورغيَ او هلته ئي يوه زانيه ښځه وليده
٢ او ور ننه وت ۞ او غزه‌يانو ته وويلې شول چه شمشون دلته
راغليَ دَی نو دوي ئې چاپېره شول او ټوله شپه ئي ورته پسوني
وکړه دَ ښهر په دروازي کښې ټوله شپه ورته غلي شوي وُو نو
٣ وئي ويل هرکله چه صبا رڼا شي نو و به ئي وژنو ۞ او شمشون
تر نيمي شپي ملاست وه بيا په نيمه شپه کښې پورته شه و دواړه
پلي او دواړه ستني دَ ښهر دَ دروازي ئي واخستلي او له اړونو
سره ئي وکاږلي او په اوږو ئي کېښودلي او هغه غره ته ئي
وخېژولي چه دَ حبرون په مخامخ دَی
٤ ۞ او پس له دي داسي وشوه چه دَ سورق په خوړ کښې
٥ په يوي ښځي چه دليله نوم ئي وه مئين شه ۞ نو هغي ته دَ
فلسطينيانو سرداران وختل ورته ئي وويل چه ته هغه ونغوله
وګوره چه دا لوي قوّت ئي په څه دَی او په څه به مونږ حمله
پرِ وکړو چه مونږ ئي وتړو او عاجز ئي کړو نو به مونږ هريو
٦ تاته يو زر او سل مثقاله سپين زر درکړو ۞ نو دليلي شمشون
ته وويل چه ما ته را وښيه که نه چه دغه لوي قوّت ستا په څه دَی
٧ تا به څرنګ څوک وتړي چه عاجز دِ کړي ۞ نو شمشون هغي ته
وويل که ما په اوو تازيو ژيو چه لا وچي نه وي وتړي
نو زه به ضعيف شم او له سريو به به دَ يوه په شان شم ۞
٨ نو دَ فلسطينيانو سردارانو هغه اوه تازي ژيِ چه

٩ لا وچي نه وي هغي ته وروړلي او هغه ئي پرې وتاړلي٩ او پسوني
هغې ښځه په کوټړئ کښې ناسته وه نو هغې ده ته وويل چه
اي شمشونَ فلسطينيان په تا بانْدِ — نو ده هغه دَ تازي ژئ
داسي پريکړلي لکه چه دَ سنړو باټِ پريکړي شِي چه دَ اور بوي
١٠ ورسِي او دَده قوّت معلوم نه شه ١٠ نو دليلي شمشون ته
وويل گوره زه دِ مسخره کړم او دروغ دِ راته وويل اوس
١١ راوښيه که نه چه په څه به ته وتړلې شي ١١ نو ده هغي ته وويل
چه که ما په نوِيو رسيو وتړِي چه استعمال شوي نه وِي نو
١٢ زه به ضعيف شم او له سړيو نه به ديوه په شان شم ١٢ نو
دليلي نوي رسيئ واخستلي او پرې ئي وتاړه او دي ورته وويل چه
اي شمشونَ فلسطينيان په تا بانْدِ — او پسوني په کوټړي کښې
ناسته وه او ده هغه په خپلو بازوګانو دَ تار په شان پريکړلي
١٣ ١٣ او دليلي شمشون نه وويل لا تر اوس دِ زه مسخره کړي يم
او دروغ دِ راته وويل نو ماته راوښيه چه په څه به وتړلي شي
نو ده هغي ته وويل چه که ته ځما دَ سر اوه کوڅۍ له تنستي
١٤ سره واودي ١٤ نو هغي دَ ميخ سره هغه ټکوهلي او ورته ئي وويل
چه اي شمشونَ فلسطينيان په تا بانْدِ — نو دي له خوبه ويښ
١٥ شه او دَ تنستي ميخ ئي وکيښ او تنسته هم ١٥ نو دي هغه ته
وويل ته څرنګ وائي چه زه په تا مينه کوم او زړه دِ راسره
نه دَي گوره دري واره دِ مسخره کړي يم او زه دِ خبر نه کړم
١٦ چه ستا هغه لوي قوّت په څه دَي ١٦ او چه هغي دَي په خپلي
خبري هره ورځ تنګاوه او دي ئي زوره نو دَ هغه ځان ترمرګه
١٧ پوري تنګ شه ١٧ نو هغي ته ئي ټول زړه خپل څرګند کړ ورته
وئي ويل چه ځما په سر پاکي پورته شوي نه ده ځکه چه زه دَ
مور له ګيډي نه نذير دَ الله يم نو که ځما سر وخريلَ شِي

قوت به م رانه لړي ښي او ضعيف به شم او د يوه سړي په
شان به شم ۱۸ او چه دليلې وليدل چه هغه دا په هر هغه څه ۱۸
چه دَده په زړه کښ وُو خبر کړه نو ئي واستاوه او دَ فلسطينيانو
سرداران ئي وبلل و ئي ويل چه دا وار را وخيژئ ځکه چه ما
ته ده ټول زړه خپل ښکند کړ نو دَ فلسطينيانو سرداران
دي ته وختل او سپين زر ئي په خپلو لاسونو کښ وخيژول
۱۹ او دي ئي په خپلو زنګنونو اوده کړ او يو سړي ئي راوباله ۱۹
او اوه کوڅې دَده دَ سر ئي وخريلي او دَده په آزارولو ئي شروع
وکړه او قوّت ئي ورنه لاړ شه ۲۰ او دي وويل اي شمشون ۲۰
فلسطينيان په تا باندِ او هغه له خپل خوبَ وينښ شه او ده
ويل چه زه به دَ نورو وارونو په موافق ووزم او و به ښنډيږم
او نه پوهيده چه خداوند له ما نه لرې شه ۲۱ او فلسطينيانو ۲۱
ونيو او سترګي ئي وويستلي او غزّه ته ئي کوز کړ او دَ زيړو
په ځولانو ئي وتاړه او دَ زندان په کور کښ ئي ميچن کوله ۲۲ او ۲۲
دَ سر وېښته ئي پس له خريلو په ټوکيدلو سر شول
۲۳ او دَ فلسطينيانو سرداران جمع شول چه دَ داجون ۲۳
خپل الله له لويه ذبيحه ذبح کړي او خوشحالي وکړي و ئي ويل
چه ځمونږ الله ځمونږ دښمن شمشون ځمونږ په لاس کښ راکړ
۲۴ او چه خلقو وليدل نو دَ خپل الله حمد ئي وکړ ځکه چه ۲۴
دوي ويل چه ځمونږ الله هغه دښمن ځمونږ په لاس کښ
راکړ چه ځمونږ زمکه ئي خرابه کړه او ډير ئي حلال کړي يُو ۲۵ او ۲۵
داسي وشول چه دَدوي زړونه خوشحاله شول نو دوي وويل چه
شمشون را وبولئِ چه ځمونږ دَپارَ لوبي وکړي نو هغوي شمشون
دَ زندان له کوره راوباله او ده دَ هغو دَ وړاندِ لوبي کولي او
دَ ستنو به منځ کښ ئي ودرولي وه ۲۶ نو شمشون هغه ځوان ۲۶

ته چه په لاس ئي نيولئ وه ووئيل چه ما پرېږده چه زه هغه
۲۷ ستنه مسه کړم چه کور پرې ولاړ دي چه تکيه پرې وکړم ۲۷ او
هغه کور له سړو او له ښځو ډک وه او هلته کښ ټول سرداران
دَ فلسطينيانو وُو او په بام باندې په تقدر دَ دريو زرو سړي
۲۸ او ښځي وي چه دَ شمشون لوبي ئي کتلي ۲۸ نو شمشون خداوند
ته فرياد وکړ و ئي وئيل اي خاونده ښوه ياد مې کړه که نه او
مضبوط مې کړه اي الله تش دا وار چه زه له فلسطينيانو نه دَ
۲۹ خپلو دوارو سترګو بدله واخلم ۲۹ او شمشون هغه دواړه مينځني ستني
ونيولي چه کور پرې ولاړ وه او تکيه ئي پرې کړي وه يوه ئي په
۳۰ ښي لاس سره او بله ئي په کيڼ لاس سره ۳۰ او شمشون ووئيل
چه زه به هم له فلسطينيانو سره مړ شم نو په ټول قوّت سره
ټيټ شه نو کور په سردارانو او په هغو ټولو خلقو چه په کښ
وُو پرېوت نو هغه چه ده دَ خپل مرګ په وقت کښ مړه کړل له
۳۱ هغو نه ډېر وُو چه ده په خپل ژوند کښ مړه کړل ۳۱ نو دَده
ورونړه او ټول کور دَ پلار ئي کوز شول او وا ئي خست او و ئي
خيژاوه او دَ صرعه او دَ اشتاؤل په مينځ کښ دَ خپل پلار منوحَ په
قبر کښ ئي ښخ کړ او ده دَ اسرائيل قاضي توب شل کاله وکړ؛

# اوه لسم باب

۲ ۱ او دَ افرائيم له کوهستان نه يو سړئ وه ميکا نوم ئي وه ۲ او
هغه خپلي مور ته ووئيل چه هغه يو زر سل مثقاله سپين زر
چه له تا نه اخستلي شوي وُو چه تا لعنت پرې کاوه او ځما په
غوږونو کښ دې هم ووئيل ګوره هغه سپين زر ما ځخه دي
ما واخستل او مور ئي ورته ووئيل اي ځما ځويه ته دَ خداوند
۳ مبارک يي ۳ نو هغه يو زر او سل مثقاله سپين زر ئي خپلي مور

ته وګرزول نو دَ هغه مور ووېل چه ما دغه زر په پاکئِ سره
خداوند له مقدّس کړي دِي له خپلَ لاسَ خپل زوي لره دَ
تراشلِي صورت او دَ وېلي کړِي شوِي صورت دَ جوړولو دَپارَ نو
اوس به ئي پښنته درکړم ۴ نو چه ده هغه زر خپلي مور ته ورکړل ۴
نو دده مور دوه سوه مثقالَ سپین زر واخستل او کارېګر ته
ئي ورکړل چه هغه یو تراشلیَ صورت او یو وېلي کړيَ صورت
ور نه جوړ کړِي او دغه دَ میکاه په کور کښ وُو ۵ او دَ هغه ۵
میکاه سړِي دَ خدایانو دَپارَ یو کور وه او آفود او ترافیم ئي جوړ
کړل او دَ خپلو زامنو نه ئي دَ یوه لاس مقدّس کړل او هغه
دَدغه کوهین شه ۶ او په دغو ورځو کښ په اسرائیل کښ ۶
بادشاه نه وه هر سړِي هغه کار کاوه چه دَ هغه په سترګو
کښ به خوښ وه

۷ او دَ بیت‌لحم یهوداَ نه یو ځوان دَ خیلخانيِ دَ یهودا او ۷
هغه لاوِي وه هلته کښ استوګه کاوه ۸ نو هغه سړيَ دَ بیت‌لحم ۸
دَ یهودا له ښهرَ لاړ شه او هر چرته چه برابري وشِي هلته
کښ استوګه کوي نو دَ افرائیم کوهستان ته راغيَ دَ میکاه کره او
چه هغه خپله لار واخلِي ۹ نو میکاه ورته ووېل چه ته له کومه ۹
راغلي ده ورته ووېل چه لاوِيَ یم دَ یهوداَ له بیت‌لحمَ او زه
ځم تا چه هرچرته چه ځاي و مومم هلته ووسم ۱۰ نو میکاه ورته ۱۰
ووېل چه ما څخه اوسه او ځما دَپارَ پلار او کوهین شه او
زه به تا ته په کال کښ لسْ مثقالَ سپین زر او یوه جوړه جامي
او خوراک درکوم او هغه لاوِيَ ورسره لاړ ۱۱ نو هغه لاوِيَ له ۱۱
هغه سړِي سره په تم کېدلو راضِي شه او هغه ځوان دَ هغه
له زامنو نه دَیوه په شان وه ۱۲ نو میکاه دَ هغه لاوِيَ لاس ۱۲
مقدّس کړل او هغه ځوان دَ هغه کوهین شه او دَ میکاه

۱۳ په کور کښې وه ۱۳ نو میکاه وویل چه زه اوس پوه شوم چه
خداوند له ما سره ښه کوي ځکه چه یو لاوي ځما کوهین شه ؞

# اتلسم باب

۱ آ او په دغو ورځو کښې په اسرائیل کښې بادشاه نه وه او په دغو
ورځو کښې دَ دانیانو فرقي دَ اوسیدلو دَپارَ وراثت لټاوه ځکه
چه دَ دوي دَپارَ تر دې ورځې پورې دَ اسرائیل په فرقي کښې وراثت
۲ پرېوتلې نه وُه ۲ نو بني دان له خپلې خپلخانې نه پنځه سړي له خپلو
حدونو نه بهادران سړي واستول له صرعه او له اشتاؤل نه تاچه
دَ زمکې جاسوسي وکړي او معلومه ئې کړي او هغوي ته ئې وویل
چه لاړ شئ دَ هغې زمکې حال معلوم کړئ نو دوي دَ افرائیم
کوهستان ته دَ میکاه کره ورغلل او هلته کښې ئې شپه تېره کړه
۳ ۳ او چه دوي لا دَ میکاه کور ځنه وُو نو آواز ئې دَ هغه لاوي
ځوان وپېژاند او هلته ور وګرزېدل او وئې ویل چه ته دلته
چا راوستلې یې او په دې ځاي کښې څه کوي او دلته دِ څه دِي
۴ ۴ نو هغه دوي ته وویل چه میکاه ما له داسي او داسي وکړل
۵ او زه ئې په اجاره واخستم او زه دَ هغه کوهین شوَلم ۵ نو
هغو ده ته وویل چه ته له الله نه سوال وکړه چه مونږ پوه شُو
په هغه لار چه مونږ په کښې تلونکي یُو کامیاب به شي که نه -
۶ ۶ نو دوي ته هغه کوهین وویل چه په سلامتیا سره ځئ ستاسو
هغه لار چه په کښې ځئ دَ خداوند په حضور ده
۷ ۷ نو هغه پنځه سړي لاړل او لایش ته ورغلل او هغه
خلق چه دَ هغه په نزدي کښې اوسیدل وئې لیدل چه په قرارئ
سره لکه چه دَ صیدونیانو عادت وه آرام او قرار کوونکي وُو او
په هغې زمکه کښې اختیاروال وارث د قابلیت نه وه او دوي له

صیدونیانو نه لرې وُو او دَ دوي دَ هیڅ سړي سره کار نه وه ۸ او ۸
دوي خپلو ورونړو ته صرعه او اشتاوُل ته راغلل او ورونړو
ورته وویل چه تاسو څه وایئِ ۹ نو دوي و ویل پورته شئ چه ۹
مونږ هغوي ته وخیژُو ځکه چه مونږ هغه زمکه ولیده او کورئِ
چه هغه ډیره ښه ده او تاسو چُپ اوسئِ په تللو کښې سُستي
مه کوئِ چه ورننه وزئ او هغه زمکه په میراث واخلئِ ۱۰ ستاسي ۱۰
په ورتلو کښې به هغه قوم ته ورشئِ چه په قراره دَي او هغه
زمکه ارته ده الله هغه ستاسو په لاس کښې درکړي ده یو مکان
چه په هغه کښې دَ هیڅ څیز احتیاج چه په زمکه کښې کیږي
نشته

۱۱ نو له هغه ځاي ئي کوچ وکړ دَ دانیانو له خیلخانې نه ۱۱
له صرعه او اشتاؤل نه شپږ سوه وسله تړلي سړي دَ جنګ -
۱۲ او وختل او په قریت‌یعاریم په یهودا کښې ډیره شول دي دپاره ۱۲
هغه ځاي تر دي ورځي پوري محنه دان بولي ګوره دغه دَ قریت‌یعاریم
دَ وروستو دَي ۱۳ او له دغه ځایه دَ افرائیم کوهستان ته تیر ۱۳
شول او دَ میکاه کورته ورغلل ۱۴ نو هغو پنځو سړو چه دَ زمکي ۱۴
دَ جاسوسئ دپارَ لایش ته تللي وُو ځواب وکړ خپلو ورونړو ته ئي
و ویل چه تاسي خبر یئِ څه؟ چه په دغو کورونو کښې آفود او
ترافیم او تراشلي صورت او ویلي کړيَ شوي صورت شته دَي؟ نو
اوس پوه شئِ چه تاسي به څه کوئِ ۱۵ نو دوي هغه ځاي ته ۱۵
وګرزیدل او دَ هغه ځوان لاوِي په کور کښې یعني دَ میکاه په کور
کښې راغلل او له هغه نه ئي دَ سلامتیا تفحص وکړ ۱۶ او هغه ۱۶
شپږ سوه وسله تړلي سړي دَ جنګ چه دَ بني‌دان وُو دَ نوتلو
دروازي څخه ولاړ وُو ۱۷ نو هغه پنځه سړي چه دَ زمکي دَجاسوسئ ۱۷
دپارَ تللي وُو هغه ځاي ته وختل او تراشلي صورت او آفود

او ترافيم ئي واخستل او هغه ويلي كړي صورت او هغه كوهين
دَ ننوتلو دروازي څخه دَ شپږو سوو وسلي تړليو سړو دَ جنګ
۱۸ سره ولاړ وه ۱۸ او هغه دَ ميكاه كور ته ننوتل او تراشلي صورت
او آفود او ترافيم او ويلي كړي صورت ئي واخستل او هغه
۱۹ كوهين دوي ته وويل دا څه كوئِ ۱۹ دوي هغه ته وويل چُپ
شه لاس په خپلي خولي كيږده او له مونږ سره څه او څمونږه پلار
او كوهين شه دا ستا دَپارَ ښه ده چه ته دَ يوه كور كوهين شي
۲۰ يا دَ نرقي او دَ خيلخاني په اسرائيل كښ شه؟ ۲۰ نو دَ كوهين زړه
خوشحاله شه او آفود او ترافيم او تراشلي صورت ئي واخستل
۲۱ او دَ قوم په مينځ كښ ننوت ۲۱ بيا دوي وګرزيدل او لاړل او
۲۲ هلكان او مويشيان او بارونه ئي وړاندِ كيښوول ۲۲ او چه دَ
ميكاه له كوره لري شول نو هغه سړي چه په هغو كورونو كښ
وُو چه دَ ميكاه كور څخه وُو جمع شول او بنيِ دان ئي لاندِ كړ
۲۳ ۲۳ او بنيِ دان ته ئي نعري كړي او هغوي مخونه ور وګرزول
ميكاه ته ئي وويل چه په تا څه شوي دِي چه دَ داسي ټولي سره
۲۴ راغي ۲۴ ده وويل چه څما خدايان چه م جوړ كړي وُو تاسو
دَ كوهين سره آخستلي دِي او لاړلِ نو ما ته نور څه پاتي دِي؟
۲۵ او تاسي وايِ چه په تا څه وشول؟ ۲۵ بنيِ دان ور ته وويل چه
نه خپل آواز څمونږ په مينځ كښ مه اوروه هسي نه چه په
تاسو باندِ سړي چه تلخ مزاجي دِي حمله وكړي نو تا او ستاخاندان
۲٦ به هلاك كړي ۲٦ نو بنيِ دان په خپلي لاري تلل او چه ميكاه
وليدل چه دوي له ما نه زورآوردي نو وګرزيده او خپل كور
۲۷ ته وجاروت ۲۷ او دوي هغه چه ميكاه جوړ كړي وُو او هغه
كوهين چه دَ هغه وه واخستل او لايش ته ورغلل هغه آرام
او قرار كونكي قوم ته او هغه ئي دَ توري په مخ ووهل او ښهر

ئي به اور و سيزه ۲۸ او خلاصونكى ئي هيڅوك نه وه ځكه چه هغه ۲۸
له صيدونه لرې وه او دَ دوي دَ چا سره خبره نه وه او
هغه دَ بيت رحوب په خوړ كښ وه نو دوي ښهر بنا وكړ او په كښ
و اوسيدل ۲۹ او دَ ښهر نوم ئي دان كيښود دَ دوي دَ پلار دان ۲۹
په نوم چه اسرائيل له زيږيدلى وه ليكن دَ هغه ښهر نوم اول
لايش وه ۳۰ او بني دان دَ خپلو ځانونو دَ پاره هغه تراشلي صورت ۳۰
ودراوه او يهوناتان دَ جرشوم ځوي دَ موسىٰ ځوي هغه او زامن
ئي دَ دانيانو دَ قوم دَ پاره دَ زمكي دَ اسيرئ تر ورځي پوري
كوهينان وُو ۳۱ او دوي دَ خپلو ځانونو دَ پاره دَ ميكاه هغه ۳۱
تراشلي صورت چه ده جوړ كړي وه ټولي ورځي ئي كيښود چه
دَ الله كور په شيلوه كښ وه ٭

# نه لسم باب

۱ او په دغو ورځو كښ چه په اسرائيل كښ بادشاه نه وه ۱
نو يو لاوي سړي وه چه دَ افرائيم دَ كوهستان په وروستو
استوګه كاوه نو هغه له بيت لحم دَ يهودا نه دَ ځان دَ پاره يوه
سريته ښځه واخستله ۲ نو هغي سريتي ورنه زنا وكړه او له ۲
ده نه دَ خپل پلار كره چه په بيت لحم دَ يهودا كښ وه لاړله
او هلته دَ څلورو مياشتو تر ورځو پوري وه ۳ او دَ دي سړي پورته ۳
شه او په دي پسي لاړ تا چه زړه ئي خوشحال كړي او را وئي ګرځوي
او له ده سره دَ ده نوكر او دَ ده دوه خرونه وُو نو دي ئي
دَ خپل پلار كره ورننه يوست نو دَ هغي ځواني پلار دَ ده په
ملاقات سره خوشحاله شه ۴ او دَ ده سخر دَ هغي ځواني پلار ۴
پاتي كړ نو دي له هغه سره دري ورځي پاتي شه نو دوي خوړل
او څښل او هلته كښ ئي شپه تيروله ۵ او په څلورمي ورځي ۵

داسي وشوه چه دوي سحر وقتِي په صبا پاسيدل او ديَ دَ تللو
دَپارَ ودريده نو دَ ځواني پلار خپل زوم ته وويل چه زړه
۶ دِ دَ ډوډيُِ په نوړيُِ مضبوط کړه نو بيا ورځيُ ۶ نو دوي کښيناستل
او دواړو سره وخوړل او وڅښل او دَ ځواني پلار سړِي ته وويل
۷ راضِي شئ او شپه تيره کړيُِ او ستا زړه دِ خوشحاله وِي ۷ او
چه هغه سړِي دَ تللو دپارَ پورته شه نو بيا دَده سخر په ده
۸ زور وکړ او وګرزيده او هلته کښ ئِي شپه تيره کړه ۸ بيا په
پنځمه ورځ کښ دَ تللو دَپارَ صباح وقتِي پورته شه او دَ ځواني
پلار ورته وويل چه خپل زړه مضبوط کړه کله نه او تاسي دَ ورځي تر
۹ ګرزيدلو ځند وکړيُِ او دوي دواړو وخوړل ۹ بيا سړِي دَ تللو
دَپارَ پورته شه دَي او سرِيته ئِي او نوکر ئِي نو ده ته دَده
سخر دَ ځواني پلار وويل ګوره کله نه چه ورځ غروب ته نزدي شوه
اوس شپه کړيُِ ګوره چه ورځ ارام‌ګيري دلته شپه کړه او زړه
دِ خوشحاله کړه او صبا وقتِي په خپلي لاري روان شه او خپلي
۱۰ کيږديُ ته لاړ شه ۱۰ نو سړِي نه راګرزيده چه شپه وکړِي بلکه
پورته شه او روان شه او دَ يبوس په برابر ورغيَ (چه دغه
اورشليم دَي) او له ده سره دوه زين کړِي خره او سرِيته ئِي ورسره
۱۱ وه ۱۱ او چه دوي يبوس ځخه وُو نو ورځ ډيره ګوزه شوه نو هغه
نوکر خپل خاوند ته وويل راشه چه مونږ دي ښهر دَ يبوسيانو
۱۲ ته وګرزو او په کښ شپه تيره کړو ۱۲ نو دده خاوند ورته وويل
چه مونږ دَ بيګانه ښهر ته نه ستا نه کيږو چه هلته کښ
۱۳ يو له بني‌اسرائيلو نه نشته مونږ به جبعي ته تير شو ۱۳ او
خپل نوکر ته ئِي وويل ځه چه مونږ يوه مکان ته ورشو او په
۱۴ جبعه يا په رامه کښ شپه تيره کړو ۱۴ نو دوي پوري شول او
۱۵ لاړل او نمر دَ بنيامين جبعي ځخه وربانْدِ پريوت ۱۵ نو دوي هغه

ځاي ته ستانه شول تاچه ورننوزي او په جبعه کښې شپه
تېره کړي او ورننه وتل او دَ ښهر په چوک کښې کښيناستل او
۱۶ هيڅوا دوي دَ شپې تېرولو دَ پارَ خپل کور ته بو نه تلل ۱۶ او کوره
چه يو سپين ږيرَې له خپله کاره له پټي نه دَ نماښام په وقت
راغې او هغه سړَې دَ افرائيم له کوهستانه وه او هغه په جبعه
۱۷ کښې بېګانه وه او دَ هغه ځاي سړي بنيامينې وُو ۱۷ نو هغه سترګې
پورته کړې او هغه مسافر سړي ئې په چوک دَ ښهر کښې وليد
نو هغه سپين ږيرې سړي ورته وويل چه ته چرته ځې او له کومه
۱۸ راځې ۱۸ نو ده هغه ته وويل چه مونږ دَ يهودا له بيت‌لحم نه دَ
افرائيم دَ کوهستان وروستو ته ځُو زه دَ هغه ځايه يم او دَ
يهودا بيت‌لحم ته لاړوم او زه دَ خداوند کور ته ځم او هيڅوک
۱۹ نشته چه خپل کور ته مو بوزي ۱۹ او مونږ ځخه پروړه او واښه
څمونږ دَ خرو دَ پارَ شته دي او هم ډوډئ او شراب ځما دَ پارَ
او ستا دَ وينځې دَ پارَ او دَ دي نوکر دَ پارَ چه ستا له سريونو سره
۲۰ دَي دَ هيڅ څيز احتياج نشته ۲۰ نو هغي سپين ږيري سړي ورته
وويل چه تا له سلامتيا ده ستا ټول احتياجونه په ما دِي ليکن
۲۱ ته په چوک کښې شپه مه تيروه ۲۱ او خپل کور ته ئې بوت او
دَ دوي خرو ته ئې واښه ورکړه او دوي خپلې پښې وينځلې او
۲۲ وئې خوړل او وئې څښل ۲۲ او چه دوي خپل زړونه خوشحالول
نو کوره چه دَ هغه ښهر سړي دَ بني بليعال سړي له کوره چاپېره
شول او دروازه ئې وټکوله او له هغه سپين ږيري دَ کور دَ خاوند
سره ئې خبره وکړه وئې ويل چه ته هغه سړَي چه ستا کور ته
۲۳ درغلَې دَي را وئې باسه چه مونږ ئې وپېژنو ۲۳ نو هغه سړي
دَ کور خاوند ور ووت ور ته وئې ويل نه اي ځما ورونړو داسې
شرارت مه کوئِ ځکه چه دغه سړَي ځما کور ته راننوتې دې نو

۲۴ دا قبيح كار مه كوئ ۲۴ كورئ خما ببغله لور او دَ هغه سرينه دوي
به اوس را وباسم نو تاسو ئي ذليلي كړئ او چه ستاسو په سترګو
كښ ښه ښكاريږي ورسره وكړئ ليكن دي سړي سره تاسي دا قبيح
۲۵ كار مه كوئ ۲۵ چه هغو سړو دَ هغه وانه وربدل نو هغي سړي
خپله سرينه ونيوله او دوي ته ئي بهر ور وويستله او هغوي دا
وپيژندله او ټوله شپه ئي ترصباح پوري ورسره وار په وار وكړل او
۲۶ چه صباح وخوت نو ئي پريښودله ۲۶ او هغه ښځه په وقت دَ صباح
كښ راغله او دَ هغه سړي دَ كور دروازي څخه چرته چه دَدي
۲۷ خاوند وه تر رڼا پوري پرته وه ۲۷ نو صباح دَدي خاوند پورته شه
او دَ كور دروازي ئي پرانتلي او دَ تللو دَپارَ لاري ته ووت او ګوره
چه هغه سرينه ښځه دَ كور په دروازي پرته وه او لاسونه ئي په
۲۸ دُرشلي پراته وُو ۲۸ نو ده هغي ته وويل پورته شه چه ځو مګر
هيڅ ځواب ئي ور نه كړي شه نو هغه ئي په خره بار انخستله او
هغه سړي پورته شه او خپل مكان ته لاړ شه او چه خپل كور
ته ورغي نو چاړه ئي واخسته او خپله سرينه ئي ونيوه او له هډوكو
سره ئي دولس ټكړي پريكړلي او هغه ئي دَ اسرائيل ټولو حدونو
۳۰ ته واستولي ۳۰ او هرچا چه به ليدل نو به ئي ويل چه دَدي په
شان نه شوي دَي او نه ليدلي شوي دَي له هغي ورځي نه چه
بني اسرائيل دَ مصر له زمكي نه را پورته شول تر نن ورځي
پوري په دي كښ غور وكړئ او مصلحت وكړئ او خبره وكړئ +

# شلم باب

۱ ۱ نو ټول بني اسرائيل ووتل او جماعت جمع شه لكه دَ يو سړي
له دان تر بيرِ سبعه پوري سره له زمكي دَ جلعادَ په مصفاه
۲ كښ خداوند ته ۲ او سرداران دَ ټول اُمّت ودريدل ټولي فرقي

دَ اسرائيل دَ الله دَ امّت په جماعت کښې څلور سوه زره پياده توري
يستونکي ٣ نو بني بنيامين واوريدل چه بني‌اسرائيل مصفاه ته وختل ٣
او بني‌اسرائيل وويل خبره وکړئ چه دا شرارت څرنګ وشه ٤ نو ٤
هغي لاوِي سړِي دَ وژلي شوي ښځي خاوند ځواب ورکړ و ئې ويل
چه زه او څما سرِيته دَ بنيامين جبع ته ننوتلو چه شپه تيره کړُو
٥ نو په ما باندِ دَ جبع خلق پورته شول او په کور کښې ئې دَ ٥
شپي په وقت ګير کړم او کوشش ئې وکړ چه ما مړ کړِي او څما
سريته ئې داسي ذليله کړه چه مړه شوه ٦ نو ما خپله سريته ٦
واخستله او ټکړي ټکړي مِ کړه او ټولو ښهيو دَ ورانت دَ اسرائيل
ته مِ واستوله څکه چه دوي په اسرائيل کښې سپکه او قباحت
وکړه ٧ ګورئِ تاسي ټول بني‌اسرائيل يئِ اوس دلته تاسي صلاح او ٧
مصلحت راکړئِ ٨ نو ټول اُمّت لکه يو سړَي پورته شه و ئې ويل چه ٨
له مونږ نه دِ يو سړَي خپلي کيږدي ته نه ځي او يو دِ خپل کور ته
مخ نه کړِي ٩ او اوس دا هغه خبره ده. چه مونږ به ئې په جبعه ٩
وکړو هسک به پرِ واچوو ١٠ نو مونږ به لس سړِي په سلو پسي ١٠
له ټولو فرقو دَ اسرائيله او سل په زرو پسي او زر په لکو پسي
واخلو دَ اُمّت دَ رسد دَ اخستلو دَپارَه هرکله چه دوي دَ بنيامين
جبعي ته ننوزِي نو موافق دَ هغه ټول قباحت چه دَ اسرائيل
سره ئې کړَي دي ورسره ئې وکړو ١١ نو ټول سړِي دَ اسرائيل په ١١
ښهر باندِ سره يو شوِي لکه دَ يو سړِي جمع شول
١٢ او دَ اسرائيل فرقو سړِي واستول ټولو فرقو دَ بنيامين ١٢
ته ئې وويل چه داڅه شرارت دي چه په تاسي کښې کيږي ١٣ نو اوس دَ بني ١٣
بليعال سړِي چه په جبعه کښې دِي راڅئ کړِئ چه مونږ ئې مړه کړُو او له
اسرائيل نه شرارت نيست کړُو ليکن بنيامين را نه غلل چه دَ خپلو
ورونړو بني‌اسرائيلو آواز واورِي ١٤ نو بني بنيامين له ښهرونو نه ١٤

په جبعه کښې جمع شول چه دَ بنیِ اسرائیلو سره جنګ ته ورووزي
۱۵ ۱۵ او بنیِ بنیامین په دې ورځ کښې شپږویشت زره سړي دَ ښهرونو
و شمیرلي شول چه نوري ئې ېستلي وي بې له اوسیدونکو دَ جبعې
۱۶ هغه چه اوه سوه سړي چونړ کړي شوي شمار کړي شوي وُو ۱۶ له
دې ټوله قومه اوه سوه سړي ګڼ لاسي چونړ کړي شوي وُو دې ټولو
په مچوغنو سره کاڼي ویشتل او صحیح به ئې ویشتل او نه به ئې
خطا کول
۱۷ ۱۷ او دَ اسرائیل دَ سړو شمار بې له بنیامینه څلور سوه
۱۸ زره سړي توري یستونکي وُو دا ټول سړي دَ جنګ وُو ۱۸ نو دوي
پورته شول او بیت ایل ته وختل او له الله نه ئې سوال وکړ
بنیِ اسرائیلو وویل چه څوک به اول موږ نه اوّل دَ بنیِ بنیامین سره
۱۹ جنګ ته وخېژي نو خداوند وویل یهودا اول ۱۹ نو بنیِ اسرائیل
۲۰ په صبا کښې پورته شول او په جبعه ډېره شول ۲۰ او دَ اسرائیل
سړي دَ بنیامین سره جنګ ته ووتل او دَ اسرائیل سړو دَ جنګ
۲۱ دَپارَ جبعې څخه دَ خپل ځائونو صفونه وتړل ۲۱ نو بنیِ بنیامین له
جبعې نه ووتل او له اسرائیله ئې په دغې ورځې کښې دوه ویشت
۲۲ زره سړي په زمکې هلاک کړل ۲۲ او دَ اسرائیل دَ اُمت سړي مضبوط
شول او بیا ئې دَ جنګ دَپارَ صفونه وتړل په هغه ځائې کښې
۲۳ چه اول ورځ ئې په کښې صفونه تړلي وُو ۲۳ بیا بنیِ اسرائیل وختل
او دَ خداوند دَ وړاندې ئې تر نمابنامه وژړل او خداوند ته ئې
سوال وکړ و ئې ویل چه موږ دِ بیا دَ بنیِ بنیامین خپل ورور دَ ورود
جنګ ته وړاندې شُو که نه او خداوند ورته وویل چه ورو وخېژئ
۲۴ ۲۴ نو بنیِ اسرائیل بنیِ بنیامین ته په دویمې ورځې نژدې شول
۲۵ ۲۵ او بنیامین له جبعې نه په دویمه ورځ دَدوي مخې ته ووتل
او له بنیِ اسرائیله ئې بیا اتلس زره سړي په زمکې هلاک کړل.

او دا ټول توري یستونکي وُو ٢٦ نو ټول بني اسرائیل او ټول قوم وختل ٢٦
او بیت ایل ته ورغلل او ونې ژړل او هلته کښ دَ خداوند دَ
وړاندِ کښیناستل او دغه ورځ ئې تر ماښامه پورې روژې ونیولې
او سیزونکي قربانئِ او دَ سلامتیا ئې دَ خداوند دَ وړاندِ وخیژولې
٢٧ او بني اسرائیلو خداوند ته سوال وکړ (ځکه چه هلته کښ صندوق ٢٧
دَ عهد دَ الله په هغو ورځو کښ وه ٢٨ او فنیحاس زوي دَ الیعاذر ٢٨
زوي دَ هارون دَ هغه دَ وړاندِ په دغو ورځو کښ ولاړ وه)
و ئې ویل چه زه دِ بیا وګرزم چه دَ بنیامین ورور خیل سره
جنګ به وکړم یا پریږدم نو خداوند وویل وخیژه ځکه چه زه به
صباح هغه ستا په لاس درکړم ٢٩ نو اسرائیلو له جبعې نه ګیرچاپیر ٢٩
پسونې کښینوله
٣٠ او په دریمه ورځ کښ بني اسرائیل په بني بنیامین وختل ٣٠
او جبعې ته ئې صفونه وتړل لکه په وړاندینو وختونو کښ ٣١ نو ٣١
بني بنیامین دَ هغو خلقو مخې ته ووتل او له ښهرَ وکښلې شول
او دَ اول او دَ دویم وار په شان دَ هغه قوم په قتل او په وهلو
ولګیدل په هغو اوچتو لارو کښ چه یوه بیت ایل ته او بله
جبعې ته په میدان کښ ختله دیرش سړي ئې له بني اسرائیله
و وژلل ٣٢ نو بني بنیامین وویل چه دوي ځمونږ له مخ نه دَ اوّل ٣٢
په شان تښتي لیکن بني اسرائیلو وویل چه مونږ به وتښتو او
دوي به له ښهرَ لارې ته راکاږو ٣٣ نو ټول سړي دَ اسرائیل ٣٣
له خپلو ځایونو نه پورته شول او په بعل تامار کښ ئې صفونه
وتړل او پسونې دَ اسرائیل له خپله ځایه دَ جبعې له میدانَ
ووتلې ٣٤ او دَ جبعې په مخامخ لس زره سړي چه له ټوله اسرائیله ٣٤
چونړ کړي شوي وُو او جنګ سخت وه لیکن دوي نه پوهیدل چه
بلا را باندِ پریوځي ٣٥ نو خداوند بنیامین دَ اسرائیل دَ وړاندِ ٣٥

وواهه او بني‌اسرائيل په هغي ورځي کښې پنځه ويشت زره سړي او
سل سړي هلاک کړل دا ټول توري يستونکي سړي وُو
۳۶ ۳۶ نو بنيامين وليدل چه هغوي مات شول او دَ اسرائيل
سړو ځاي بنيامين ته ورکړ ځکه چه دوي توکّل وکړ په هغي
۳۷ پسوني چه په جبعه ئي کښېنولي وه ۳۷ نو پسوني تلوار وکړ او په
جبعه ئي حمله وکړه او پسوني خوره شوه او هغه ټول ښهر ئي دَ
۳۸ توري په مخ وواهه ۳۸ او دَ اسرائيل دَ سړو او دَ پسوني په مېنځ کښې
۳۹ دا نښه وَه چه دوي لوي ستني دَ لوګي له ښهرَ پورته کړي ۳۹ او هرکله
چه دَ اسرائيل سړي په جنګ کښې وګرځيدل نو بنيامين دَ اسرائيل
دَ سړو په وهلو او په وژللو سر شول په قدر دَ ديرشو سړو ځکه
چه دوي ويل چه هغوي څموږ له مخه تښتيدونکي دي لکه په اول
۴۰ جنګ کښې او چه له ښهرَ ستنه دَ لوګي په پورته کيدلو سر شوله
نو بنيامين په وروستو وکتل او ګوره چه له ټوله ښهره دَ آسمان
۴۱ په لوري لوګي پورته کيده ۴۱ او دَ اسرائيل سړي وګرځيدل او دَ
بنيامين سړي په ربيدلو سره وتښتيدل ځکه چه دوي وليدل چه
۴۲ بلا را باندِ پريوتله ۴۲ او هغوي دَ اسرائيل دَ وړاندِ دَ بيابان په لار
کښې وګرځيدل ليکن جنګ ورباندِ راغي او هغوي چه دَ ښهرونو
۴۳ وُو دَ هغو په مېنځ کښې ئي هلاک کړل ۴۳ نو دوي بنياميني ګير
کړل او وئي تښتول او دَ خپل آرام په ځاي ئي تيل وهل دَ
۴۴ جبعي په برابر دَ نمرخاته په لوري ۴۴ نو له بنيامينه اتلس زره سړي
۴۵ پريوتل دا ټول توتناک سړي وُو ۴۵ نو هغوي وګرځيدل او بيابان
دَ رمون پربني ته وتښتيدل او له هغوي نه ئي پنځه زره سړي
په اوچتو لارو وانړول او په هغو پسي تر جدعومَ پوري ونښتل
۴۶ او دوه زره سړي ئي ورنه ووهل ۴۶ او ټول پريوتلي دَ بنيامين په
دغي ورځي کښې پنځه ويشت زره توره يستونکي سړي وُو دا ټول

نوّت ناک سړي وّو ۴۷ او شپږ سوه سړي وګرزيدل او بيابان ۴۷
ته وتښتيدل دَ رمّون پرښي ته او دَ رمّون په پرښي کښ څلور
مياشتي مقام شول ۴۸ او دَ اسرائيل سړي بنيامين ته وګرزيدل ۴۸
دَ توري په مخ ئي ووهل هم ټول ښهر تر ښاروېو پوري هرڅه
چه موندو شول او هم هغه ټول ښهرونه چه وموندلي
شول په اور ئي وسيزل *

# يو ويشتم باب

۱ او دَ اسرائيل سړو په مصفاه کښ قسم کړي وه وئي ويل ۱
هيڅوک دِ له موږ نه خپله لُور بنيامين ته نه ورکوي ۲ او امّت ۲
بيت ايل ته ورغيَ او هلته کښ تر ماښامَ پوري دَ الله دَ وړاندِ
ناست وه او خپل آوازونه ئي پورته کړل او په لويه ژړا ئي وژړل
۳ وئي ويل اي خداوندَ الله دَ اسرائيل چه دا په اسرائيل کښ ۳
څه وشول چه له اسرائيل نه نن ورځ يوه فرقه وَرَکيږي ۴ صبا ۴
داسي وشوه چه اُمّت سحر وختي پورته شه او هلته کښ ئي مذبح
جوړه کړه او سيزونکي او دسلامتي قرباني ئي وخيژولي ۵ او بني اسرائيل وويل ۵
چه هغه څوک دَي چه په جماعت کښ دَ ټولو فرقو دَ اسرائيل
خداوند ته رانه غيَ نو هغه لوئ قسم ئي په هغه باندِ خوړلي
وَه چه خداوند ته په مصفاه کښ نه خيژي وئي ويل چه هغه
دِ قتل کړي شي ۶ او بني اسرائيل په بنيامين وَرور خپل پښيمانه ۶
شه وئي ويل چه نن ورځ يوه فرقه دَ اسرائيل نه پريکړي شوه
۷ موږ به دَ هغو دَ پاتي شويو دَپارَ دَ ښځو په باب کښ څه ۷
وکړو او موږ په خداوند قسم کړي دَي چه موږ به له خپلو
لوڼو نه ښځي ورنه کړو ۸ او دوي وويل چه کومه فرقه دَه دَ ۸
فرقو دَ اسرائيلَ چه په مصفاه کښ خداوند ته ختلي نه دَه او

٩ ګوره چه دېري ته يو سړَي له يابيشِ جلعادَ راغلَي نه وه ٩ او چه
أُمّت شمار شوي وه نو دَ يابيشِ جلعاد دَ اوسيدونكيو نه يو سړَي
١٠ هلته نه وه ١٠ نو دوي هغه ځاي ته دولس زره پهلوانان سړي
واستول حكم ئي ورته وكړ و ئي ويل لاړ شئ دَ يابيشِ جلعاد اوسيدونكي
١١ له ښځو له هلكانو سره دَ توري په مخ ووهئ ١١ او دا هغه ده
چه تاسي به ئي كوئ چه هر نر او ښځه چه له نره ځملاستل
١٢ پيژني نو حرم به ئي كړئ ١٢ نو دَ يابيشِ جلعاد دَ اوسيدونكو ئي څلور
سوه ځواني پيغلي وموندلي چه سړَي ئي نه پيژاندو له نر سره
په ځملاستلو او هغه ئي دېري ته شلواه ته دَ كنعان په
زمكه كښ راوستلي
١٣ ١٣ او ټول جماعت واستاول او له هغه بني بنيامين سره
چه دَ رِموَن په پرښه كښ وو خبره وكړه صلح ته ئي راوبلل
١٤ ١٤ نو په دغه وقت كښ بنيامين وګرزيدل او هغه ښځي چه له
ښځو دَ يابيشِ جلعاد نه ژوندي پاتي شوي وي دوي ته ئي وركړلي
١٥ او دا هم هغو ته بس نه شوي ١٥ او أُمّت دَ بنيامين دَ پارَ پښيمانه
شه ځكه چه خداوند دَ اسرائيل په فرقو كښ چاود وكړ
١٦ ١٦ نو دَ جماعت سپين ږيرو وويل چه مونږ دَ پاتي شويو
سره دَ ښځو په باب كښ څه وكړو ځكه چه له بنيامين ښځي
١٧ وركي شولي ١٧ او دوي وويل چه دَ بنيامين دَ خلاصو شويو دَ پارَ
ميراث ضرور دَي چه يوه فرقه دَ اسرائيل نه ونه توږلي شي
١٨ ١٨ او مونږ نه توانيږو چه له خپلو لوڼو نه ښځه وركړو ځكه
چه بنيِ اسرائيل قسم كړي وه ويل ئي ملعون دَي هغه چه بنيامين
١٩ ته ښځه وركوي ١٩ بيا ئي وويل ګورئ په شلواه كښ اختر دَي
دَ خداوند كال په كال په شمالي طرف دَ بيتِ ايل مشرقي طرف
ته دَ اُچتي لاري چه له بيتِ ايل نه شكيم ته خيژي او جنوبي

طرف دَ لبونه ٢٠ او بني بنيامين ته ئې حکم ورکړ وئې ويل لاړ ٢٠
شئ او په تاکستانونو کښ پسوني وکړئ ٢١ او نظر کوئ کوره ٢١
چه دَ شلواه جينکئ ووزي چه په ګډېدلو کښ وڅرخيږي نو
تاسي له تاکستانونو نه ووزئ او دَ خپلو ښځونو دَ پارَ دِ
هر يو له شلواه له جينکو نه ښځه ونيسي او دَ بنيامين زمکي
ته دِ ئې بوزي ٢٢ نو چه دَ هغو پلرونه او ورونړه راشي چه ٢٢
مونږ ته شکايت وکړي مونږ به هغو ته ووايو چه تاسي ځمونږ
دَ پارَ په هغو مهرباني وکړئ ځکه چه مونږ هر يوه له په جنګ
کښ ښځه وانه خستله او تاسو په هغه وقت کښ ورنه کړلي
او که نه اوس به تاسو ګرم وئ ٢٣ نو بني بنيامينو هسي وکړل ٢٣
او دَ خپل شمار په موافق ئې له ګډېدونکيو نه ښځي ونيولي او
بو ئې تلي او خپل ميراث ته وجاروتل او ښهرونه ئې بنا کړل
او په کښ واوسيدل ٢٤ نو بني اسرائيل له هغه ځايه لاړ په ٢٤
دغه وقت کښ هر يو خپلي فرقي ته او خپلي خيلخاني ته او له
دغه ځايه هر يو خپل ميراث ته ووت ٢٥ په دغو ورځو کښ ٢٥
په اسرائيل کښ بادشاه نه وه هر يوه به هغه کول چه
په سترګو کښ به ئې ښه وه ❊

# روت

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو ژبه ترجمه كړي شه




T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد آلرحمان او غلام جلاني كاتب

در مطبع برتش و فارن بيبل سوسيتي لندن

# RUTH, IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

1895.

# دَ روت کتاب

## اول باب

۱ آ او داسې وشوه دَ قاضيانو دَ حکم کولو په ورځو کښې چه په
زمکه کښې قحط شه او يو سړي له بيت لحم يهودا نه لاړ شه چه
دَ مواب په ميدان کښې واوسي هغه او دَ ده ښځه او دوه
۲ ځامن ئې ۲ او دَ هغه سړي نوم اليملک او دَ هغه دَ ښځې نوم
ناعومي او دَ هغه دَ دوو ځامنو نومونه محلون او کليون افراتيان
دَ بيت لحم يهودا او دَ مواب ميدان ته راغلل او هلته کښې وو
۳ ۳ او اليملک دَ ناعومي سړي مړ شه او هغه پاتې شوله او دوه
۴ ځامن ئې ۴ او هغو دَ خپلو ځانونو دَپاره موابيانې ښځې واخستلې
دَ يوې نوم عرفه او دَ بلې نوم روت وه او هلته قريب لس کال
۵ اوسيدل ۵ او هغه دواړه محلون او کليون هم مړه شول او هغه
۶ ښځه له خپلو دواړو ځامنو او له خپل خاوند نه پاتې شوله ۶ او
هغه ودريدله خپلو نږيندو سره چه دَ موآب له ميدان نه
پسته وګرزي ځکه چه دَ موآب په ميدان کښې ئې واوريدل
چه خداوند دَ خپل اُمّت بازخواست وکړ چه ډوډئ ورکړي -
۷ ۷ او دا له هغه مکان نه چه په کښې وه ووتله او هغه
دوه نږيندې ئې ورسره وې او دَ يهودا زمکې ته پسته دَ تلو
۸ دَپارَ په لارې تللې ۸ او ناعومي خپلو دواړو نږيندو ته وويل
تاسو هره يوه دَ خپل مور کور ته بيرته لاړې شئ خداوند دِ
په تاسو فضل وکړي لکه چه تاسو له مړو شويو سره او له
۹ ما سره وکړه ۹ خداوند دِ تاسو ته درکړي چه تاسو هره يوه

دَ خپل خاوند په کور کښې آرام ومومئ او دوي ئي ښکل کړي
۱۰ او هغوي خپل آوازونه پورته کړل او وئي ژړل ۱۰ او هغوي ورته
۱۱ وويل چه موږ به تا سره ستا امّت ته وګرزو ۱۱ او ناعومي
وويل چه اي ځما لوڼو پستنه وګرزئ څه دَپارَ ما سره دروځئ
ځما په ګېډي کښې زامن تر اوسه شته دي چه ستاسو سړي
۱۲ شي څه ؟ ۱۲ اي ځما لوڼو پستنه وګرزئ دروځئ ځکه چه زه
دَ سړي کولو نه يم سپين سري يم که چري وايم چه ځما اميد
هم دي او نن شپه ځما سړي هم وشي او زامن به هم وزيږوم
۱۳ ۱۳ تر هغه پوري چه دوي لوي شي صبر به وکړئ څه ؟ تاسو
به دَ هغو دَپارَ له سړي کولو نه پاتي شئ څه ؟ هسي نه اي
ځما لوڼو چه ستاسو دَپارَ ډيره تلخ ځاني يمه ځکه چه لاس
۱۴ دَ خداوند ځما په خلاف راووت ۱۴ او هغوي خپل آوازونه
پورته کړل او بيا ئي وژړل او عرفي خپله خواښي ښکل کړه
۱۵ ليکن روت ورپوري ونښتله ۱۵ او دي وويل ګوره ستا يورخيل
اُمّت ته او خپلو خدايانو ته پستنه وګرزيده ته په خپلي يور
۱۶ پسي وګرزه ۱۶ او روت وويل زاري راته مه کوه چه تا پرېږدم
او په تا پسي دَ تللو نه وګرزم ځکه چه هرچرته چه ته دروځي
زه به دروځم او هرچرته چه ته شپه کوي زه به شپه کوم ستا
۱۷ اُمّت ځما اُمّت او ستا الله ځما الله دي ۱۷ هرچرته چه ته مري
زه به مرم او هلته به ښخه کړي شم خداوند دِ هسي له ما
سره وکړي او له دينه زيات که چري سوا له مرګه بل څيز
۱۸ ځما په مينځ او ستا په مينځ کښې جدائي وکړي ۱۸ او چه دي
وليدله چه هغه ورسره په تلو ټينګه وه نو ورسره له خبرو
۱۹ کولو نه پاتي شوه ۱۹ او هغه دواړه تللي تر هغه چه بيت لحم ته
راغللي او هسي وشوه چه بيت لحم ته ورننه وتلي نو ټول ښهر

دَ هغو په سبب وخوځيده او وئي ويل چه دغه ناعومي ده څه؟
۲۰ او دي هغوي ته وويل چه ناعومي مه بولئ ماراَ مِ بولئِ ځکه ۲۰
چه القادر له ما سره ډيرې تلخي وکړې ۲۱ زه ډکه شوي ووتلم او ۲۱
خداوند تشه راوګرزولم ځله مِ ناعومي بولئِ او خداوند خواره
کړم او القادر په ما بلا راواستوله ۲۲ او ناعومي پسِتنه راغله او ۲۲
روت موآبي نږور ئې ور سره وه چه دَ مواب له ميدانَ پسِتنه
راوګرزيدله او هغوي په بيت لحم کښ راغلي دَ اوربشو دَ لو په
شروع کښ ❊

# دويم باب

۱ او ناعومي دَ خپل سړي يو رشته دار لاړه جبار قوتناک دَ اليملک ۱
له خاندانه او نوم ئې بوعز وه ۲ او روت موآبي ناعومي ته وويل ۲
چه پټي ته لاړه شم کدَ نه او وږي ټول کړم په هغه پسي چه په
سترګو کښ ئې نعمت ومومم نو ورته ئې وويل چه لاړه شه اي
ځمَا لورِي ۳ او دا لاړه او راغله او په پټي کښ په لوګرو پسي ۳
ئې ټولول او نصيب ئې دَ بوعز دَ پټي په حصي کښ راغي چه دَ
اليملک دَ خپلخاني وه ۴ او ګوره بوعز له بيت لحم نه راغي ۴
او لوګرو ته ئې وويل يهوه عماکم او هغو ورته
ويل چه يبارکا يهوه ۵ او بوعز خپل نوکر ته چه ۵
په لوګرو ودرولي شوي وه وويل دغه ځوانه دَ چا ده ۶ او هغه ۶
نوکر چه په لوګرو ودرولي شوي وه ځواب ورکړ وئي ويل چه
دغه موآبي ځوانه دَه چه ناعومي سره دَ مواب له ميدانه پسِتنه
راغله ۷ او دي وويل چه ټول کړم او دَ کيډيو په مينځ کښ ۷
په لوګرو پسي جمع کړم کدَ نه او راغله او له صبا نه تراوسه
پوري شوه سوا له دي چه لږ څه ئې په کور کښ درنګ وکړ
۸ او بوعز روت ته وويل چه ته آورې کدَ نه ئې ځما لورِي په بل ۸

پسې کښې دَ انګورو دَپارَ مه درومه او له دې ځايه نه مه
۹ تيرېږه او دَلې ځما دَ ځوانيو سره ونښله ۹ ستا سترګې دِ په هغه
پټي وِي چه دوي ريبي او ورپسې درومه ګوره ما ځوانانو ته
وفرمايل چه لاس پرِ مه لګوئِ او چه تږې شې نو لوښي ته
۱۰ درومه او له هغه نه چه ځوانانو راکښلي دِي وڅښه ۱۰ نو
هغه پرمخ پريوتله او زمکې ته ټيټه شوله او ورته ئې وويل
چه ما ستا په سترګو کښې څرنګ نعمت موندلي دَي چه ته مِ
۱۱ غور کوې او زه پردئِ يم ۱۱ او بوعز ځواب ورکړ او ورته ئې
وويل چه ما ته ښِځې ښکاره شول تول څه چه تا خپلې خواښې
سره وکړه ستا دَ څښتن دَ مرګ نه پس او څرنګ تا خپل
مور پلار او دَ خپل پيدايښت وطن پرېښود او اُمّت ته چه
۱۲ په وړاندې دِ پيژندلي نه وه راغلې ئې ۱۲ خداوند دِ ستا دَ کار
بدله درکړي او پوره مزدوري دِ تا ته دَ خداوند الله دَ اسرائيل
له طرف نه چه دَ هغه دَ وزرو لاندِ پناه نيولو ته راغلې ئې
۱۳ درکړې شي ۱۳ او دې وويل اې ځما خاوندَ ستا په سترګو کښې
دِ نعمت وموم ځکه چه تا تسلّي راکړه او چه تا خپلې وينځې
ته دَ زړه خبرې کړې دِي اګر که زه ستا دَ يوې وينځې په شان
۱۴ نه يم ۱۴ او بوعز دَ خوړلو په وقت کښې ورته وويل دلې
راشه او ډوډئِ وخوره او په سرکه کښې خپله نوړئِ ډوبه
کړه او هغه لوګرو څنګ کيناستله او نيني ئې ور وغوزولې او
۱۵ دې وخوړلې او مړه شوله او څه پاتې شوې ۱۵ او چه دا
دَ انګورو دَپارَ پاڅيده نو بوعز خپلو ځوانانو ته وفرمايل وئ
ويل دَ ګيډو په مينځ کښې دِ هم آنږوي او مه ئې آزاروئِ
۱۶ ۱۶ او هم دَدې دَپارَ له ګيډيو نه په ونبکلو سره وکاږئِ
۱۷ او پرې ئې ږدئِ چه وائې نږوي او مه ئې ملامته کوئِ ۱۷ او

په پټي کښې تر نماښام پورې ئې وانړول او هغه چه دي
وانړول و ئې تکول او هغه يوه ايفا اوربشي وې ۱۸ نو وائې خستې ۱۸
او ښهر ته لاړله او خواښې ئې هغه چه دِ آنړولې وُو وليدل
او هغه څه چه پس له سوړيدو نه ئې پرېښودلي وې و ئې
يستلي ور ئې کړلي ۱۹ او خواښې ئې ورته وويل چرته دِ نن ورځ ۱۹
آنړول او چرته لګيا وې مبارک دِ وِي هغه چه په تا ئې غور وکړ
او ښځي خپله خواښې خبر کړه چه له چا سره لګيا وه او وئې ويل
دَ هغه سړي نوم چه ورسره نن ورځ لګيا وم بوعز دَي ۲۰ او ۲۰
ناعومي خپلي نږور ته وويل له خداوندَ دِ هغه مبارک وِي څکه
چه ده مهرباني کول له ژوندېو سره او له مړيو سره ترک نه کړه
او ناعومي ورته وويل چه هغه سړي مونږ ته نژدې دَي له خپلو
رشته دارانو نه له هغو نه چه دَ خلاصولو حق لري په ندلې سره
۲۱ او موآبي روت وويل دائې هم راته وويل ته ځما دَ خپلو ځوانانو ۲۱
سره اوسه تر هغه پورې چه ځما ټول لو تمام کړي ۲۲ او ناعومي ۲۲
خپلي نږور روت ته وويل تا له به ښه وِي چه ته دَ هغه دَ
پيغلو سره ووزه او نه چه په بل پټي کښې دوي درمليا شي
نو دا دَ بوعز دَ پيغلو سره ونښښتله دَ انړولو دَپارَ ترڅو چه دَ ۲۳
اوربشو لَو او دَ غنمو لَو خطم نه شه او دا له خپلي خواښې سره اوسېدله

# دريم باب

آ نو ناعومي خواښې ئې ورته وويل اي ځما لُوري ستا دَپارَ به ۱
دَ آرام ځاي نه لټوم څه؟ تا چه تا لره خير وِي ۲ او اوس بوعز ۲
ځمونږ دَ پيژندګلوي رشته دارانو نه نه دَي څه؟ چه ته دَ هغه
له ځوانيو سره وې ګوره نن شپه هغه خپل درمند دَ اوربشو
بادَ وِي ۳ نو ولانبه عطر ومږه او خپلي جامي واغونده او درمند ۳

ته کوزه شه ليکن هغه سړي ته تړ هغه چه له خوړلو ځښکلو
٤ نه فارغ نه شي ځان مه ښکاره کوه ٣ او هرکله چه دَي ځملي نو
ته به هغه ځاي چه هلته هغه ځملي وپيژني او ته به ننه وزي
او دَ ده پښي به پرانزي او ځمله او هغه به درښکاره کړي هر
٥ څه چه ته به ئي کوي ٥ او هغي ورته وويل چه ټول هغه څه
٦ چه ته وايي و به ئي کړم ٦ او دا درمند ته کوزه شوله او هسي
٧ ئي وکړل ټول څه لکه چه خواښي ورته وفرمايل ٧ او چه بوعز
خوړل او ځښکل او زړه ئي خوښ وه نو دَي دَ غلي دَ ټوپ
په آخر کښ ځملاستو ته راغي او دا په پټهي سره راغله او
٨ پښي ئي پرانتي او ځملاستله ٨ او دَ شپي په منځ کښ داسي
وشول چه هغه سړَي وويريده او واوښت او گوره چه يوه
٩ ښځه دَده پښو څخه ملاسته ده ٩ او هغه ووېل ته څوک يې
او دَي وويل زه روت يم ستا وينځه په خپلي وينځي باندِ خپله
١٠ لمن وغوړوه ځکه چه ته دَ فديي دَ خلاص کولو حق لري ١٠ او
وئي ويل چه ته اي ځما لوُري له خداوندَ مبارکه يي ځکه چه
تا په آخر کښ له اولَ زياته مهرباني ښکاره کړه چه ته په
١١ ځوانانو پسي لا نه ړي که خوارؤ که توانگر ١١ او اوس اي ځما
لوُري مه ويريږه هرڅه چه ته وايي زه به ئي ستا دَپارَ وکړم
ځکه چه ځما دَ اُمّت ټول ښهر پوهيږي چه ته نيکه ښځه يي
١٢ ١٢ او اوس په رښتيا زه دَ خلاصولو حق لرم ليکن له ما نه
١٣ نژدي يو دَ خلاصول حق‌دار شته دَي ١٣ نن شپه تيره کړه او
په صبا کښ به داسي وشي که هغه دَ خلاصولو حق ادا کوي
نو ښه ده ادا دِ ئي کړي او که دَ خلاصولو دَ حق ادا کول نه
غواړي نو زه به دَ خلاصولو حق ادا کړم **يهوه حَي دَي**
١٤ تر صبا پوري ځمله ١٤ او دا دَ هغه پښو څخه تر صبا پوري

څملاسته او وراندِ له هغه چه سړي خپل دوست پيژني نو
پاڅيدله او ده وويل چه معلوم نه شي چه څوک ښځه درمند
۱۵ ته راغلي وَه ۱۵ او وئي ويل دا څادر چه په تا باندِ دي راوړه
او وئي نيسه او وئي نيو او شپږ اوډِي ني دَ اوربشو پيمانه
۱۶ کړل او په هغي باندِ ئي کيښودل او ښهر ته لاړله ۱۶ او داخپلي
خوابني ته راغله او دي ووېل په تا څه وشول اي څما لُوري
او دي ورته بيان کړل هغه ټول څه چه سړي ورسره وکړل
۱۷ ۱۷ او وئي ويل دا شپږ دَ اوربشو ئي ما ته راکړل چه ويل ئي
۱۸ خپلي خوابني ته خالي مه درومه ۱۸ نو دي ووېل غلي کښينه
څما لُوري تر هغه پوري چه وپوهيږي چه دا خبره څرنګه واقع شي
ځکه چه هغه سړي به په آرام نه شي تر هغه چه نن ورځ
دا خبره پوره نه کړي ❊

# څلورم باب

۱ ۱ نو بوعز دروازي ته وختو او هلته کښيناست او ګوره هغه
خلاصوونکي تير شه چه ورته بوعز خبره وکړه او ورته ئي ووېل
اي فلانِي را وګرزه دلي کښينه او وَر وګرزيده او کښيناست
۲ ۲ او دَ ښهر له سپين ږيرو ئي لَس سړي واخستل او ورته ئي
۳ ووېل دلي کښينئ او هغوي کښيناستل ۳ او هغه خلاصوونکي
ته ئي ووېل نوعومي چه دَ موآب له ميدانَ پسته راغله هغه
۴ حصه دَ پټي چه څمونږ دَ ورور اليملک وه خرڅوِيَ ئي ۴ او ما
وويل چه ستا غوږونه پرانزم په دي ويلو چه دَ دوي دَ وړاندِ
چه دلي کښيني او څما دَ اُمّت دَ سپين ږيرو دَ وړاندِ ئي وپيره
که ته ئي په خلاصولو واخلي نو په خلاصولو سره ئي واخله
او که ته ئي په خلاصولو سره نه آخلي نو ما ته ووايه چه

زه پرِ وپوهیږم څکه چه بي له تا په خلاصولو اخستونکي نشته
او زه درپسي یم او هغه وویل چه زه به ئي په خلاصولو
٥ سره واخلم ٥ نو بوعز وویل چه په کومي ورځي چه دَ ناعومي له
لاسه هغه ځمکه ونیسي وبه یي نو له روت موابي: ښځه دَ مړي نه هم به ئي
٦ وپیري چه دَ مړي نوم دَ ده په میراث وِدروي ٦ او هغه دَ
فدیي خلاصونکي وویل چه نه توانیږم چه دَ ځان دَ پاره ئي په
فدیه سره واخلم هسي نه چه خپل میراث خراب کړم ته ئي
خپل ځان ته څما دَ خلاصولو حق واخله څکه چه زه ئي په
٧ خلاصولو نه توانیږم ٧ او دا ورانیِ په اسرائیل کښ دا دَ فدیي
خلاص کولو او دَ بدل کولو دستور وه چه ټولي خبري دَ قایم
کولو دَ پاره به سړي خپلي څپلۍ و یستلي او خپل همسایه ته
٨ به ئي ورکړي او دغه به په اسرائیل کښ شهادت وه ٨ او
هغه خلاصونکي بوعز ته وویل ته ئي دَ خپل ځان دَ پاره وپیره
٩ او خپلي څپلۍ ئي و یستلي ٩ او بوعز سپین ږیرو او ټول اُمّت
ته وویل چه تاسو نن ورځ شاهدان یئِ چه ما هغه هر څه
چه دَ الیملک وُو او هغه هر څه چه دَ کِلیون او دَ محلّون
١٠ وُو دَ ناعومي له لاسه مِ وپیرودل ١٠ او روت هغه موابي دَ
محلّون ښځه ما خپل ځان ته و پیروده چه ښما ښځه وِي چه
نُوم دَ مړي دَ ده په میراث وِدروم او چه نُوم دَ مړي دَ ده
له ورونړو نه او دَ ده له مکان نه پرېکړي نه شِي تاسو نن
١١ ورځ شاهدان یئِ ١١ او ټول اُمّت چه په دروازي کښ وه
او سپین ږیرو وویل چه شاهدان یُو خداوند دِ دَ هغه
ښځه چه ستا په کور کښ راغلي ده دَ راحیل او دَ لیاه په
شان کړي چه دغو دوارو دَ اسرائیل کور بنا کړ او ته په
افراتاه کښ قوّتناک شي او ستا نوم دِ په بیت للحم کښ

مشهور وِي ۱۲ او ستا کور دِ لکه دَ کور دَ فارِص وِي چه ۱۲
تامار يهودا ته وزيږاوه له هغه تخم نه چه خداوند به ئي
له دي ځواني نه درکړي ۱۳ نو بوعز روت واخستله او هغه ۱۳
دَده ښځه شوله او چه ورننه وت نو خداوند بارداره کړه
او ځوي ئي وزيږاوه ۱۴ او ښځو ناعومِي ته وويل چه خداوند دِ ۱۴
مبارک وِي هغه چه له تا ئي نن ورځ خلاصوونکي منع نه کړ
دَده نوم دِ په اسرائيل کښ وبللي شِي ۱۵ او هغه به تا له ۱۵
دَ ځان جاروتني او ستا په زوړوالي کښ پرورش کونکي وِي
ځکه چه نږور دِ چه له تا سره محبّت کوِي او چه تا ته هغه
له اوو ځامنو نه ښه ده وي ئي زيږاوه ۱۶ او ناعومِي هغه هلک ۱۶
واخست او په خپل غيږ کښ ئي کيښود او دا ئي دائي شوله
۱۷ او گاونډيانو ښځو دَ هغه نوم کيښود ويل ئي چه دَ ناعومِي ۱۷
دَپارَ ځوي پيدا شه نو دَ هغه نوم ئي عوبيد وباله چه هغه
پلار دَ يشِي پلار دَ داؤد دَي ۱۸ او دا دِي پيړئِ دَ فارِص فارِص ۱۸
حصرون وزيږاوه ۱۹ او حصرون رام وزيږاوه او رام عميناداب ۱۹
وزيږاوه ۲۰ او عميناداب نحشون وزيږاوه او نحشون شلمون ۲۰
وزيږاوه ۲۱ او شلمون بوعز وزيږاوه او بوعز عوبيد وزيږاوه ۲۱
۲۲ او عوبيد يشِي وزيږاوه او يشِي داؤد وزيږاوه ※ ۲۲

# سموایل

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو کښ ترجمه کړي شه




T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد آلرحمان او غلام جلاني کاتب

در مطبع برتش و فارن بیبل سوسئیتي لندن

# SAMUEL I. & II., IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.
1895.

# دَ سموایل وړنبي کتاب

## اول باب

آ او یو سړَي وه له راماتیم صوفیم دَ افرائیم له کوهستانَ او دَ ۱
هغه نُوم القاناه وه ځوي دَ یروحام ځوي دَ الیهو ځوي دَ توهو
ځوي دَ صوف هغه افرائیمي وه ۲ او دَ هغه دوه ښځې وې دَ یوې ۲
نُوم حنّا او دَ بلې نُوم فنّنه وه او دَ فنّني اولاد وه او دَ حنّا
اولاد نه وه ۳ او دا سړَي به له خپلَ ښهرَ کال په کال ځوت ۳
چه په شیلوها کښ خداوند دَ لښکرو ته سجده او ذبح وکړي
او هلته دوه ځامن دَ عیلي حفني او فنیحاص کوهینان دَ خداوند
وُو ۴ او هرکله چه به هغه ورځ راغله چه القاناه به په کښ ۴
ذبح کوله نو فنني خپلي ښځې ته او دَ هغو ټولو ځامنو او لوڼو
ته به ئې حصّه ورکړه ۵ لیکن حنّا ته به ئې دوچند حصّه ورکړه ۵
ځکه چه ده په حنّا مینه کوله او خداوند دَ هغې رحِم بند کړي
وه ۶ او دَ هغې بنّ هغه ډیره خپه کړه چه ئې خپه و لري ځکه ۶
چه خداوند دَ هغې رحِم بند کړي وَه ۷ او چه دَي به کال په ۷
کال هسي کول هر وار چه دا به دَ خداوند کور ته ختله هسي
به ئې خپه کوله نو دي وژړل او نه ئې خوړل ۸ او القاناه سړي ئې ۸
ورته وویل اي حنّا څه دَپارَ ژاړي او ولي نه خوري او ولي زړه
دِ غمجن دي زه تاته له لسو ځامنو نه ښه نه یم څه ؟ ۹ نو پس ۹
له خوړلو څښلو په شیلوها کښ حنّا پورته شوله او عیلی کوهین
دَ خداوند دَ هیکل ستني څنګه په خپلي کرسيء ناست وه ۱۰ او ۱۰
دا تلخ ځانې وه او خداوند ته ئې دُعا کوله او ډیر ئې ژړل ۱۱ او یوه ۱۱
نذرانه ئې ومنله او وئې ویل اي دَ فوځونو خداونده که ته

دَ خپلي وينځي خوارئِ ته وګوري او ياده مِ کړي او خپله وينځه
هيره نه کړي ليکن خپلي وينځي ته تخم دَ انسان ورکړي نو زه
به ټولي ورځي دَ هغه دَ ژوندانه خداوند ته ورکړم او دَ هغه
۱۲ په سر به چاړه پورته نه شي ۱۲ او داسي وشوه چه دَ خداوند
۱۳ په مخ کښ دي زياته دُعا کوله او عيلي ئي خولي ته کاته ۱۳ او حنّا
په خپل زړه کښ خبري کولي تش شونډي ئي خوزيدلي او آواز
۱۴ ئي آوريدي نه شه او عيلي ګمان کاوه چه دا په نشه کښ ده ۱۴ او
عيلي ورته وويل تر څو به په نشه کښ يي شراب دِ له ځانه
۱۵ لري کړه ۱۵ او حنّا ځواب ورکړ و ئي ويل نه اي زما خاوندَ زه
غمجن روحي ښځه يم ما شراب او نشه څکلي نه ده بلکه خپل
۱۶ ځان مِ دَ خداوند په مخ کښ توي کړي دَي ۱۶ خپله وينځه دَ
بليعال دَ لُور په شان مه ګڼره ځکه چه ما له ډيره فريادَ او دَ
۱۷ خپل خپګانَ تر اوسه پوري خبره کړي دَه ۱۷ نو عيلي ځواب ورکړ
و ئي ويل په سلامتيا سره دروځه او الله دَ اسرائيل دِ ستا هغه
۱۸ سوال چه تا ورته سوال وکړ در وبخښي ۱۸ او دي ووېل چه ستا
وينځه دِ ستا په سترګو کښ نعمت ومومي نو هغه ښځه په خپلي
۱۹ لاري کښ لاړه او و ئي خوړل او څهره ئي بيا هسي نه وه ۱۹ نو
دوي صبا وختي پورته شول او دَ خداوند په مخ کښ ئي سجده
وکړه او وجاروتل او خپل کور ته په راماه کښ ورغلل او القانا
۲۰ خپله ښځه حنّا و پيژندله او خداوند هغه ياده کړله ۲۰ او هسي
وشوه دَ زماني په ګرزيدلو کښ او حنّا بارداره شوه او زوي ئي
وزيږوه او دَ هغه نوم ئي سموايل کيښود ځکه چه ما له خداوند
۲۱ غوښتلي دَي ۲۱ او هغه القاناه سړي او دَ هغه ټول کور وخوت
۲۲ چه خداوند ته دَ هغه کال ذبيحه ذبح کړي او نذر ئي ۲۲ او
حنّا و نه ختله ځکه چه دي خپل سړي ته وويل تر هغه

چه دا وُرکي له تي پریکړې شي نو بیا به يې زه بوزم چه دَ
خداوند په مخ کښې حاضر شي او هلته تر همیشه پوري اوسي
او القاناه دَ هغي سري ورته وویل هرڅه چه ستا په سترګو ۲۳
کښ ښه وي هغه وکړه پاتي شه څو چه دَي له تي نه پریکړي
مګر خداوند دِ خپلي خبري قایمي کړي نو هغه ښځه پاتي شوه او
خوي له يې تي ورکاوه څو چه يې له تي نه پریکړ ۲۴ او چه دَي ۲۴
يې له تي نه پریکړ نو څان سره يې وخېژاوه او دري سخوندران
او یوه ایفاد میده او یو ژي دَ شرابو او دَ خداوند کورته يې
بوته په شیلوه کښ او هغه هلک ورکي وه ۲۵ او هغه سخوندر ۲۵
يې حلال کړ او هلک يې عیلي ته بوته ۲۶ او هغي وویل اي څما ۲۶
خاوندَ ستا په څان چه ژوندي دَي اي څما خاوندَ زه هم هغه
ښځه یم چه تا څخه دلته ولاړه وم او خداوند ته مِ دُعا کوله
۲۷ دَ دي هلک دَپارَ مِ دُعا وکړه او خداوند ما ته څما سوال چه ۲۷
ور نه مِ سوال وکړ راکړي يې دَي ۲۸ له دي سببَ ما خداوند ۲۸
ته امانت ورکړ په ټولو ورڅو دَ ژوندانه دَده خداوند ته امانت
دَيَ او هغوي هلته خداوند ته سجده وکړه ✣

# دویم باب

۱ او حنّا دُعا کوله او و يې وویل
زړه څما ښاد شه په خداوند ښکر څما بلند شه په خداوند
څما خوله په دُښمنانو ارته کیږي څکه چه زه ستا په خلاصون خوښیږم
دَ یهوه په شانِ بل څوک قدوس نشته دا په دي چه بي له تانه بل څوک نشته ۲
او نشته پر ښمي بل څوک په مثل څمونږ دَ الله
مه زیاتوئِ خبري دَ غرور فحش دِ ستاسو له خولو ونه وځي ۳
څکه چه الله دَ عالِم خداوند دَي او کارونه په ده تللي کیږي

۴ دَ جبّارانو لِندي ماتي شولي اودَ توري خورليو ملا په قدرت وترلي شولي
۵ پک شوي و خپل څانونه په ډوډئ مزدوران کړل وږي شويو بس کړل
هو شنډي اوه و زيږول او ډيره اولاد واله ضعيفه کيږي
۶ خداوند مر کوي او ژوندي کوي قبر ته ئي کوزوي او را خيژوي
۷ خداوند خوار کوي او دولتمند کوي کوزوي او پورته کوي
۸ مسکين له خاورو نه پورته کوي خواران له ډيرانه هسکوي
چه له اميرانو سره ئي کښينوي او دَ جلال دَ کرسي ئي وارثان کوي
څکه چه ستني دَ عالم دَ خداوند دي او په هغو باندِ ئي آباده دنيا کيښوده
۹ پښي دَ خپلو پاکانو به وساتي او شريران به په تياري کښ چپ شي
څکه چه سړي په قوت سره غلبه کولي نه شي
۱۰ مُدّعيان به دَ خداوند مات شي په هغوي به له آسمانه وغوريږي
خداوند به دَ زمکي دَ اِنتها حکم وکړي اوخپل بادشاه ته به قدرت ورکړي
او دَ خپل مسيح ښکر به سرفراز کړي
۱۱ ۱۱ القاناه خپل کورته رامآه ته لاړ او هغه هلک دَ خداوند خدمت
کاوه دَ عيلي کوهين په مخ کښ
۱۲ ۱۳ ۱۲ او بني عيلي بني بليعال وُو خداوند ئي نه پيژانده ۱۳ او
دَ کوهينانو دستور له امّت سره دا وه هر سړي چه به ذبيحه
ذبح کوله دَ کوهين نوکر به دَ غوښي پخولو په وقت ورتّه او دري
۱۴ غاښي به دَ هغه په لاس کښ وه ۱۴ او هغه به ئي په ديک
يا په ديکچي يا په کړاهي يا په کټوئي کښ ووهله هر څه چه به
ئي په دري غاښي کښ پورته کړل کوهين به دَ خپل څان دَ پاره
واخستل په شيلوه کښ ئي هم هسي کول دَ ټول اسرائيلو
۱۵ سره چه هلته به راتلل ۱۵ هم په دي شان سره وړاندِ له هغي
نه چه دوي به وازدي په اور سيځلي نو دَ کوهين نوکر به ورتّه
او هغه سړي ته به چه ذبح کونکي وه وويل چه غوښه دَ کباب

دَپارَ کوهين له راکړه څکه چه دا پخه شوي غوښه به له تا نه
۱۶ وانه خلي مګر کچه ۱۶ او که هغه سړي به ويل چه ورښي دِ هغوي
وازده وسيځي بيا څومره چه ستا زړه غواړي ځان له ئې واخله
نو ده به ويل چه نه اوس ئې راکه او که نه نو په زور سره
۱۷ به ئي واخلم ۱۷ نو دَ هغو ځوانانو خطا دَ خداوند په مخ کښې ډيره
لويه وَه څکه چه خلقو دَ خداوند هديه سپکه کړله
۱۸ ۱۸ او سموايل دَ خداوند په مخ کښې خدمت کاوه او
۱۹ هغه هلک وه ملا ئې ترلي دَ کتان په افود سره ۱۹ او مور ئي ده
له وړوکي قباڅې جوړوله او کال په کال به ئي وله راوړله -
هرکله چه دا به دَ خپل څښتن سره دَ سالانه ذبحي دَ ذبح
۲۰ کولو دَپارَ ختله ۲۰ او عيلي القاناه او دَده ښځې ته برکت ورکړ
او و ئې ويل خداوند دِ تا ته له دي ښځي نه اولاد دروبخښي
دَ دي امانت دَپارَ چه خداوند ته امانت شوي وه او دوي
۲۱ خپل مکان ته لاړل ۲۱ او خداوند په حنّا ساتنه وکړه او هغه
حامله شوه او دري ځامن او دوه لوڼي ئې وزيږول او هغه
هلک سموايل خداوند څخه لوي شه
۲۲ ۲۲ او عيلي ډيره سپين ږيري شه او هغه ټول څه چه
ځامنو ئې دَ ټولو اسرائيلو سره کول ده اوريدل او چه څرنګ
دوي ښځلاستل له هغو ښځو سره چه دَ جماعت دَ خيمي په
۲۳ دروازي کښې ئې خدمت کاوه ۲۳ او هغه ورته وويل ولي
داسي خبري کوئ څکه چه زه ستاسو دَ شرارت خبري دَ دي
۲۴ ټول اُمّت نه آورم ۲۴ نه اي ځما ځامنو څکه چه هغه خبري
چه زه ئي آورم ښې نه دي ستاسو دَ خداوند اُمّت جارباسئ
۲۵ ۲۵ که يو سړي دَ بل سړي خطا وکړي نو الله به ئي انصاف وکړي
او که سړي دَ خداوند خطا وکړي نو دَ هغه دَپارَ به څوک

دُعا وکړي مګر دوي دَ خپل پلار آواز وانه وريدهٔ ځکه چه
۲۶ خداوند وغوښتل چه دوي ووژلي ۲۶ او هلک سموايل لوئيدهٔ
او دَ خداوند او هم دَ انسان په نزد صالح کيده
۲۷ ۲۷ او يو مردِ خدا عيلي ته راغي او ورته ئې وويل خداوند
داسي وائي چه ما خپل ځان ستا دَ پلار کور ته په رښتيا ښکاره
۲۸ کړ چه دوي په مِصر کښ وُو دَ فرعون په کور کښ ۲۸ او ما
هغه غوره کړ دَ اسرائيل له ټولو فرقو نه چه ما ته کوهين شي
چه ځما مذبح ته وخيژي چه دَي خوشبوئي وسيځي چه دي افود
واغونډِي ځما په مخ کښ او ستا دَ پلار کور ته مِ ټولي دَ اور
۲۹ قربانئِ دَ بني اسرائيلو ور نه کړي څه؟ ۲۹ ولي ځما په ذبح او په
هديي لتي وهئ چه ما دَ خپلي استوګني په ځاي کښ فرمايلي
دِي اوخپلو ځامنو ته له ما نه زيات عزّت ورکوي چه دَ
اسرائيل دَ اُمّت له ټولي خاصي هديي نه خپل ځانونه څاربه کړئ
۳۰ ۳۰ له دي سبب يهوه الله دَ اسرائيل وائي ما خو وويل چه
ستا کور او ستا دَ پلار کور به ځما په مخ کښ تر ابده پوري
وګرزي ليکن اوس خداوند وائي هسي دِ نه وِي ځکه چه
هغوي چه ځما عزّت کوِي عزّت به ئې وکړم او هغوي چه ما
۳۱ ملامت کوِي سپک به وګنړلي شِي ۳۱ کوره ورځي راځِي چه زه
به ستا وزر او ستا دَ پلار دَ کور وزر پريکړم تر هغه چه
۳۲ ستا په کور کښ سپين ږيري نه شِي ۳۲ او ته به ځما دَ مسکن
تنګي ووينې به هغه ټولو نيکو چه دَ اسرائيل سره به ئې وکړم
او ستا په کور کښ به ټولي ورځي څوک سپين ږيري نه شِي -
۳۳ ۳۳ او هغه سړي ستا چه زه به ئې دَ خپلي مذبح نه پرې نه کړم
ستا دَ سترګو دَ فنا کولو او ستا دَ ځان دَ ټوليدلو دَپارَ به
۳۴ وِي او ستا دَ کور ټول ډيروالي به په ځوانئِ کښ مړ شي ۳۴ او

دا به ستا دَپارَ یوه نښه وِي چه ستا په دواړو ځامنو په
حفني او په فِنیحاس باندِ به راشي په یوي ورځي کښ به دواړه
مړه شي ۳۵ او زه به یو امانت‌دار کوهین دَخپل ځان دَپارَ ۳۵
پورته کړم چه دَ هغه په موافق چه ځما په زړه او ځما په فکر
کښ دِي وکړي او زه به وله یو دَ اَمَن کور جوړ کړم او هغه به
تل ورځي ځما دَ مسیح دَ وړاندِ ګرزي ۳۶ او داسي به وشي ۳۶
چه هرڅوک چه ستا په کور کښ پاتې شي را به شي او ورته
به سجده وکړي دَ سپینو زرو دَ ټوټي او دَ ډوډيِ دَګوړي دَپارَ
او و به وايي دَکهانت په یوي عهدي مِ منقرّر کړه دَپارَ دَ خوړلو
دَ یوه ټوټي ډوډئ ❊

## دریم باب

۱ او هغه هلک سموایل دَ عیلي دَوړاندِ دَ خداوند خدمت ۱
کاوه او په هغو ورځو کښ دَ خداوند کلام بیش‌قیمت وه
رویا فراخ نه وه ۲ او په هغه وقت داسي وشوه هرکله چه ۲
عیلي په خپل مکان کښ ملاست وه او سترګي ئي ضعیفي
کیدلي چه دَي دَ لیدلو قابل نه وه ۳ او وړمبي له دي چه ۳
ډیوه دَ الله تر اوسه مړه شوي نه وَه او سموایل دَ خداوند
په هیکل کښ ملاست وه چرته چه دَ الله صندوق وه ۴ او ۴
خداوند سموایل وباله او ده ووېل ګوره زه یم ۵ او ده عیلي ۵
ته وردوکړ او وئي ویل دلي یم ځکه چه تا زه وبللم او
وئِ ویل چه ما بللي نه یي وجاروزه څمله او دي لاړ څملاست
۶ او بیا خداوند بل وار و باله سموایلَ؟ او سموایل پاڅیده ۶
او عیلي ته لاړ او وئِ ویل دلي یم ځکه چه تا زه وبللم او
هغه وویل ما بللي نه يِ ځما ځویه پستنه وجاروزه څمله
۷ او سموایل تر اوسه خداوند نه پېژاند او تر اوسه په ۷

۸ هغه دَ خداوند کلام ښرکند شوي نه وه ۸ او بیا خداوند دریم
وار سموایل وباله او پاڅید او عیلي ته لاړ او وئي ویل دلي
یم ځکه چه تا زه را وبللم او عیلي فکر وکه چه خداوند هلک
۹ بللي دي ۹ نو عیلي سموایل ته وویل چه لاړ شه ځمله او
داسي به وشي چه هغه دِ وبولي نو ته ووایه خبره وکړه اي
خداوندَ ځکه چه ستا بنده آوري نو سموایل لاړ او په خپل
۱۰ مکان کښ څملاست ۱۰ او خداوند راغي او ودریده او ناره يُ
وکړه اوس په شان دَ وړاندینو وارونو سموایلَ سموایلَ او
۱۱ سموایل وویل ووایه ځکه چه ستا بنده اوري ۱۱ او خداوند
سموایل ته وویل گوره زه به په اسرائیل کښ خبره وکړم چه
۱۲ هرڅوک چه يُ آوري دواړه غوږونه به يُ تنزیږي ۱۲ په هغه
ورځ کښ به په عیلي هغه ټول څه چه ما دَ ده دَ کور په باب
۱۳ کښ ویلي دي قایم کړم له شروع نه تر آخره پوري ۱۳ ځکه
چه ما ورته وویل چه زه به دَ ده په کور تر ابده پوري عدالت
وکړم دَ هغي بدئِ دَ پارَ چه دي وپوهیږي چه دَ هغه ځامنو
په خپل ځانونو بانڊِ لعنت راوړ او هغه يُ تنبیه نه کړل -
۱۴ ۱۴ او له دي سبب ما دَ عیلي دَ کور دَ پارَ قسم خوړلي دَي چه
دَ عیلي دَ کور بدي به په ذبحو او په هدیو تر ابده پوري کفاره
۱۵ نه کړيَ شي ۱۵ او سموایل تر صبا پوري ملاست وه او دَ
خداوند دَ کور دروازي يُ لري کړي او سموایل وویریده چه
۱۶ عیلي ته هغه رؤیا ښرکنده کړي ۱۶ او عیلي سموایل راوباله او
۱۷ وئي ویل سموایلَ ځما زویه او ده وویل زه دلي یم ۱۷ او ده
وویل هغه څه خبره دَه چه خداوند درته ویلي ده زه منّت کوم
چه له ما نه يُ مه پټوه خداوند دِ هسي له تا سره وکړي او له
دي نه زیات که چري له ما نه یوه خبره له هغو خبرو نه چه

هغه درته ویلي دي پټه کړي ۱۸ او سموایل هغه ټولي خبري ۱۸
ور ته ښکاره کړلي او ورنه ئې پټې نه کړي او هغه وویل چه
دغه خداوند دَي هر څه چه دَده په سترګو کښې ښه وِي هغه
دِ وکړِي ۱۹ او سموایل لوئیده او خداوند ورسره وه او دَده ۱۹
له ټولو خبرو هیڅ یوه ئې پړي نه ښوده چه زمکه ته پریوزِي -
۲۰ او ټول اسرائیل له دَانَ تر بیرشبعَ و پوهیدل چه سموایل ۲۰
دَ خداوند دَ نبوّت دَپارَ امانتدار شه ۲۱ او خداوند بیا په ۲۱
شیلوه کښې ورښکاره شه ځکه چه خداوند سموایل ته
په شیلوه کښې ځان ځرګنداوه دَ خداوند په کلام سره ÷

# څلورم باب

۱ او دَ سموایل کلام ټول اسرائیل ته وشه او اسرائیل دَ ۱
فلستیانو مخي ته دَ جنګ دَپارَ ووتل او په ابن‌عزر ئې ډیره
وکړه او فلستیانو په افِق ډیره وکړه ۲ او فلستیانو خپل صفونه ۲
دَ اسرائیل په خلاف ودرول او چه جنګ غوړولي شه نو اسرائیل
دَ فلستیانو په مخ کښې مات شول او دوي دَ ښمي په صفونو
کښې قریب څلور زره سړي ووژلل ۳ او چه اُمّت ډیري ته راغي ۳
نو سپین‌ږیرو دَ اسرائیل وویل څه دَپارَ خداوند مونږ نن
ورځ دَ فلستیانو په مخ کښې مات کړِي یو مونږ دَ خپلو ځانونو
دَپارَ دَ خداوند دَ عهد صندوق له شیلوه نه راواخلو چه
څمونږ په مینځ کښې راشِي او څمونږ دَ دُښمنانو له لاسونو نه
مو خلاص کړِي ۴ او اُمت شیلوه ته واستول او دوي له هلته ۴
نه دَ خداوند دَ فوځونو دَ عهد صندوق چه په کروبیانو کښېني
یوړ او هغه دوه ځامن دَ عیلي حفِني او فنیحاس هلته وُو
دَ الله دَ عهد دَ صندوق سره ۵ او داسي وشوه چه دَ خداوند ۵

دَ عهد صندوق ډېري ته راته نو ټولو اسرائيلو په لوي غوغا
٦ سره ناره وکړه داسي چه زمکه وخوځيدله ۶ او چه فلستيانو دَ
هغي غوغا آواز واوريده نو وئي ويل چه دا څه آوازونه لويه
غوغا دَ عبرانيانو په ډېري کښ کيږي او پوه شول چه دَ خداوند
٧ صندوق ډېري ته راغي ۷ نو فلستيان وويريدل ځکه چه دوي
وويل الله ډېري ته راغيَ او وئي ويل چه هيَ په مونږ ځکه
٨ چه دَدغه په شان نه پرون او نه وړاندِ وشول ۸ هاي په
مونږ څوک به مو دَدي قدرتوالو اِلههانو له لاسَ خلاص
کړي دا هغه اِلههان دِي چه مصريان ئي په بيابان کښ په ټولو
٩ وهنو سره ووهل ۹ تکړه شئِ او مردانه شئِ اي فلستيانو هسي
نه چه دَ عبرانيانو بندګان شئِ لکه چه دوي ستاسو بندګان
١٠ شول مردانه شئِ او جنګ وکړئِ ۱۰ او فلستيانو جنګ وکړ او اسرائيل
ووهلي شول او هر يو خپلي خيمي ته وتښتيده او ډيره لويه
١١ وهنه وه ځکه چه له اسرائيلَ ديرش زره پلي پريوتل ۱۱ او
صندوق دَ الله ونيولي شه او دوه ځامن دَ عيلِي حفني او
١٢ فينحاس ووژلي شول ۱۲ او يو سړيَ دَ بنيامين له صفونو وزغليده
او هم په هغه ورځ شيلوه ته راغي او جامي ئي شليدلي او
١٣ خاوري ئي په سر اچولي وي ۱۳ او چه دي راغي نو ګوره عيلِي په کرسئِ
باندِ يوه خوا دروازي څخه ناست وه لار ته ئي کاته ځکه چه
زړه ئي لړزيدونکي وه دَ خداوند دَ صندوق دَپارَ او چه
هغه سړيَ راغي چه په ښهر کښ ئي بيان وکړ نو ټول ښهر
١٤ چغي ووهلي ۱۴ او چه دَ هغو چغو آواز عيلِي واوريده نو وئي
ويل چه دا دَ غوغا آواز دَ څه دَپارَ دَيَ او هغه سړيَ په تيز
١٥ راغي او عيلِي ته ئي بيان وکړ ۱۵ او عيلِي دَ آته نويو کالو وه
١٦ او سترګي ئي تلي وي او نه توانيده چه ووينې ۱۶ او هغه سړيِ

عیلي ته وویل چه زه هغه یم چه له فوځ نه راغلم او زه له صفونو
نه نن ورځ را تښتیدلي یم او ده وویل هغه خبره څه رنګ وه اي
۱۷ څما ځویه ۱۷ او هغه چه خبر ئي راوړلي وه ځواب ورکړ او وئي ویل
اسرائیل دَ فلستینیانو له مخ نه تښتیدلي دي او لويَ وهنه دَ اُمّت
په مینځ کښ هم وشوه او ستا دواړه ځامن حفنيَ او فنیحاس مړه
۱۸ شوي دي او دَ الله صندوق نیولي شوي دي ۱۸ او داسي وشوه چه
هغه دَ خداوند دَ صندوق ذکر کاوه له خپلي کرسيُ نه ورستو خوا
ته دَ دروازي په څنګ پريوت او څټ ئي مات شه او مړ شه ځکه
چه سپین ږیري سړيَ او دروند وه او دَيَ تر څلویښتو کالو پوري دَ
۱۹ اسرائیل انصافي کړي وه ۱۹ او دَ هغه نږور دَ فنیحاس ښځه بارداره وه په
زیږولو بانډِ او چه دي واوریدل چه دَ الله صندوق و نیولي شه
او چه دَ دي سخر او دَ دي سړي مړه شول نو په زنګونونو شوله
۲۰ او لنګه شوه ځکه چه دَ لنګانه دردونه پرِ غالب شول ۲۰ او دَ دي
دَ مرګیدلو په وقت هغو ښځو چه ور ته ولاړي وي ور ته ئي وویل
مه ویریږه ځکه چه ځوي دِ وزیږاوه لیکن دي ځواب ور نه کړ او
۲۱ نه ئي په زړه کښ تیر کړل ۲۱ او دَ هغه هلک نوم ئي ایکبود کیښود
وئي ویل چه مجد له اسرائیلَ لاړ شه ځکه چه دَ خداوند
۲۲ صندوق ونیولي شه او دَ خپل سخر او دَ سړي په سبب هم ۲۲ او
دي وویل چه مجد له اسرائیله لاړ شه ځکه چه دَ خداوند
صندوق ونیولي شه *

# پنځم باب

۱ ۱ او چه فلستیانو دَ خداوند صندوق اخستلي وه او له ابن عزرَ
۲ تر اشدودَ ئي یوړ ۲ او چه فلستیانو دَ خداوند صندوق
واخست نو دَ دجون کور ته ئي راوړ او دَ دجون په خوا کښ ئي
۳ کیښود ۳ او چه اشدودیان په لوي سحر پاځیدل نو ګوره چه

دجون زمکي ته پرمخ پریوتي وه دَ خداوند دَ صندوق په مخ کښې
٤ او دجون ئي ونیوه او په خپل مکان کښې ئي بیا ودراوه ۴ او چه
دوي بل صبا سحر وقتي پاڅیدل نو گوره چه دجون په زمکه پرمخ
پروت وه دَ خداوند دَ صندوق دَ وړاندِ او سر دَ دجون او دواړه
ورغوِي دَ لاسونو ئي په آستانې پریکړي وُو تش دَ دجون بدن
٥ پاتې وه ۵ له دي سببَ دَ دجون کوهینان او هغه ټول چه دَ
دجون په کور کښې ننه وځي دَ دجون په آستانې باندِ په اشدود
کښې تر نن ورځي پوري پښي نږدي
٦ ۶ لیکن دَ خداوند لاس په اشدود یانو باندِ دروند
شه او ویران ئي کړل او په بواسیرو سره ئي ووهل اشدود
٧ او دَده سرحدونه ۷ او چه دَ اشدود خلقو دا ولیدل چه
خبره داسي ده نو وئي ویل چه دَ اسرائیل دَ الله صندوق
به څمونږ سره پاتې نه شي ځکه چه دَ هغه لاس په مونږ
٨ باندِ سخت دَي او په دجون څمونږ په خداي باندِ ۸ نو وائي
ستول او ټول سرکرده دَ فلستیانو ئي راجمع کړل او وئي ویل
چه دَ دي صندوق دَ اسرائیل دَ الله سره څه وکړو؟ او دوي
وویل دَ اسرائیل دَ الله صندوق دِ جات ته یووړلي شي نو
٩ دوي دَ اسرائیل دَ الله صندوق هلته یووړ ۹ او داسي وشوه
پس له دي چه دوي یووړ نو دَ خداوند لاس په ښهر باندِ
په ډیر لوي خوځیدلو سره وه او ده دَ ښهر خلق وړوکي او هم
١٠ لوي ووهل او بواسیر تر ووتل ۱۰ نو دَ الله صندوق ئي عقرون
ته واستاوه او داسي وشوه چه دَ الله صندوق عقرون ته راغي
نو عقرونیانو چیغي وهلي وئي ویل چه دوي دَ اسرائیل دَ الله
صندوق څمونږ او څمونږ دَ اُمّت دَ مړکولو دَپارَ راوړي دَي -
١١ ۱۱ نو دوي واستول او ټول سرکرده دَ فلستیانو ئي راجمع کړل

او وئي ويل چه دَ اسرائيل دَ الله صندوق واستوئ چه خپل
مکان ته وجاروزي چه هغه مونږ اوځمونږ اُمّت مړ نه کړي
ځکه چه دَ مرګ غوغا په ټول ښهر کښ وه دَ خداوند لاس
هلته ډير دروند وه ۱۲ او هغه خلق چه نه مړ کيدل په بواسير سره ۱۲
ووهلي شول او دَ ښهر چغه آسمان ته وخته +

# شپږم باب

۱ او دَ خداوند صندوق دَ فلستيانو په وطن کښ اوو مياشتي ۱
وه ۲ نو فلستيانو کوهينان او فال آچونکي وبلل وئي ويل چه ۲
مونږ دَ خداوند له صندوق سره څه وکړو پوه مو کړئ چه په
څه سره به ئي مونږ دَده مکان ته واستوو ۳ او هغوي وويل چه ۳
که تاسي دَ اسرائيل دَ الله صندوق استوئ نو تش ئي مه استوئ
ليکن هغه له دَ ګرموالي قرباني ورو ګرزوئ نو تاسو به شفا وموئ
او تاسو ته به معلوم شي چه دَ هغه لاس ولي له تاسو نه لرې
شوي نه دَی ۴ او دوي وويل دَ ګرموالي قرباني به څه وي چه ۴
مونږ ئي ور وګرزوو او هغوي وويل په موافق دَ شمار دَ سرګروه
دَ فلستيانو پنځه بواسير دَ سرو زرو او پنځه مږي دَ سرو زرو
ځکه چه يوه وبا په تاسو ټولو اوستاسو په سرګروه باندِ ده ۵ له ۵
دي سبب تاسو به دَ خپلو بواسيرو صورتونه او دَ هغې مږو چه
زمکه ورکوي جوړ کړئ او تاسو دَ اسرائيل الله ته بزرګي ورکړئ
ګندِ که هغه له تاسو نه او ستاسو له خدايانو نه او ستاسو
له زمکي نه خپل لاس پورته کړي ۶ او تاسي ولي خپل زړونه ۶
کلک کوئ لکه چه مصريانو او فرعون خپل زړونه کلکول هرکله
چه هغه په هغوي کښ قدرت ظاهر کړ روان ئي نه کړل څه ؟
او هغوي لاړل ۷ او اوس واخلئ او يو نوي ګاډي جوړ کړئ او دوه ۷

لنکي غوا چه ورباندِ ژغ يښې شوي نه وي او هغه په ګاډِي و تړِئِ
۸ او دَ هغوي بچي ورنه کورته وګرزوئِ ۸ او دَ خداوند صندوق
واخلئِ او په ګاډِي ئي کيږدئِ او هغه دَ سرو زرو کالي چه تاسو
وله دَ ګرموالي دَ قربانئِ دَپارَ ورته پسْتنه کړئِ په يوي صندوقچي
کښ دَ هغه په خوا کښ کيږدئِ او ور روان ئي کړئِ چه هغه
۹ لاړ شي ۹ او ګورئِ که چړي دغه دَ خپل سرحد په لاري ختړي
بيتِ شمس ته نو دا هغه دَي چه په مونږ ئي دا لويَ بلا راوستي
ده او که نه نو و به پوهيږُو چه دَ هغه لاس نه و چه مونږ ئي
۱۰ ووهلو هغه په مونږ باندِ ناڅاپه عارض وه ۱۰ او هغي خلقو هسي
وکړل او دوه لنکي غوا ئي واخستلي او په ګاډي ئي و تړلي او بچي
۱۱ ئي په کور کښ بند کړل ۱۱ او دَ خداوند صندوق ئي په ګاډِي کيښود
او هغه صندوقچه دَ مږو دَ سرو زرو سره او هغه صورتونه دَ
۱۲ بواسيرو ۱۲ او هغه دوه غوا په لاري سمي تللي دَ بيتِ شمس په لاري
باندِ په اوچت سړک باندِ تللي او غړيدلي او کينړ يا ښي طرف
ته نه ګرزيدلي او سرکرده دَ فلستيانو ورپسي تلل دَ بيت شمس
۱۳ دَ سرحدَ پوري ۱۳ او دَ بيت شمس لوګو خپل غنم په خوړ کښ لو
کول اوخپلي سترګي ئي پورته کړي او صندوق ئي وليده او په ليدلو
۱۴ سره ئي خوشحاله شول ۱۴ او هغه ګاډي دَ يهوشوع بيتِ شمسي په
پټي کښ راغي او هلته ودريده او هلته لوي کاڼړي وه او دوي
دَ ګاډي لرګي وڅيرل او هغه غوا ئي خداوند ته دَ سيځونکي قربانئِ
۱۵ دَپارَ وخيژولي ۱۵ او ليويانو دَ خداوند صندوق کوز کړ او هغه
صندوقچه چه ورسره وَه چه په هغه کښ دَ سرو زرو کالي
وُو او په لوي کاڼړي ئي کيښودل او دَ بيتِ شمس خلقو سيځونکي
۱۶ قربانئِ او ذبيحي هم په هغه ورځ خداوند ته وخيژولي ۱۶ او چه
پنځو سرکردهٔو دَ فلستينيانو وليدل نُو هم په هغه ورځ عقرون

ته و جاروئل
١٧ ١٧ او دا دَ سرو زرو بواسیرونه دِي چه فلستنیانو دَخداوند
دپارَ دَ کرموالي دَ قرباني دپارَ پستنه ورکړل یو دَ اشدود دپارَ یو
دَ غزا دپارَ یو دَ اشکلون دپارَ یو دَ جات دپارَ یو دَ عقرون
١٨ دپارَ ١٨ او دَ سرو زرو مږکي ئې په شمار دَ ټولو ښهرونو دَ
فلستنیانو چه دَ هغه پنځه سرکرده وُو له قلعه‌دار ښهرونو تر
وطني کلیو پوري تر هغه لوي کاڼري پوري چه په کښ ئې. دَ
خداوند صندوق کیښود چه تر نن ورځ دَ یهوشوع بیت‌شمسي
١٩ په پټي کښ دَي ١٩ او هغه دَ بیت‌شمس خلق و وهل ځکه چه
دوي دَ خداوند په صندوق کښ وکتل او دَ اُمّت په مینځ کښ
ئې اویا سړي او پنځوس زره سړي و وهل او اُمّت ویر کاوه ځکه
٢٠ چه په لوي وهنه سره خداوند په اُمّت کښ و وهل ٢٠ او دَ
بیت‌شمس خلقو و ویل څوک توانیږي چه دَ یهوه دَ وړاندِ
ودریدلي شِي دي قُدّوس الله دَي او دِي چاته له مونږ نه
٢١ پاس خیژي ٢١ او دوي استاځي دَ قریت یعریم اوسیدونکیو ته
واستول و ئې ویل فلستنیانو دَ خداوند صندوق پسته راوړي
دَي کوز راشئ او در سره ئې پورته کړئ *

# اوم باب

١ ١ او دَ قریت یعریم خلق راغلل او دَ خداوند صندوق ئې وخیژاوه
او دَ عمیناداب په کور کښ په غونډي ئې راوړ او الیعازار ځوي
ئې مقدّس کړ چه دَخداوند صندوق ساتي
٢ ٢ او داسي وشوه له هغي ورځي نه چه صندوق په
قریت یعریم کښ قرار شه مده اوږده تیره شوه ځکه چه
شل کاله وُو او ټول کور دَ اسرائیل په خداوند پسي غم کاوه

۳ ۳ او سموایل ټول کور دَ اسرائیل ته خبره وکړه و ئي ویل که
تاسي په خپلو ټولو زړونو سره خداوند ته پسته وګرزئ نو
هغه پردي اِلهٰان او عسطاروت له خپل مینځ لري کړئ او
خپل زړونه خداوند ته تیار کړئ او تش دَ هغه عبادت کوئ
۴ او هغه به تاسو دَ فلستیانو له لاسَ خلاص کړي ۴ او بني اسرائیل
هغه بعلیم او هغه عسطاروت لري کړل او یواځي دَ خداوند
عبادت ئي کاوه
۵ ۵ او سموایل وویل ټول اسرائیل مصفاه ته راجمع کړئ
۶ او زه به ستاسو دَپارَ خداوند ته دُعا وکړم ۶ او هغوي مصفاه
ته راجمعَ شول او اوبه ئي را وکښي او دَ خداوند په مخ کښ ئي
توي کړي او هغه ورځ ئي روژي ولرلي او هلته ئي وویل دَ خداوند
په خلاف مو خطا کړي دَه او سموایل په مصفاه کښ دَ بني اسرائیلو
۷ عدالت کاوه ۷ اوچه فلستیانو واوریدل چه بني اسرائیل په
مصفاه کښ راجمعَ شول نو سرکردګان دَ فلستیانو په اسرائیل
باندِ وختل اوچه بني اسرائیلو واوریدل نو دَ فلستیانو له مخونو
۸ نه وویریدل ۸ او بني اسرائیلو سموایل ته وویل چه ځمونږ دَپارَ
خداوند ځمونږ الله ته دَ چغي وهلو نه مه قراریږه چه دَ فلستیانو
۹ له لاسَ مو خلاص کړي ۹ او سموایل یو پئي رودونکَي وریٔ واخست
او ثابته دَ سیځلو قرباني ئي خداوند ته وخیژوله او سموایل
خداوند ته دَ اسرائیل دَپارَ چغي ووهلي او خداوند ځواب ورکړ
۱۰ ۱۰ او داسي وشوه چه سموایل هغه سیځونکي قرباني خیژوله نو فلستیان
دَ جنګ دَپارَ اسرائیل ته رانژدي شول او په هغه ورځ په لوي
آواز سره خداوند په فلستیانو باندِ رعد وکړ او ورک ئي کړل
۱۱ او دَ اسرائیل په مخ کښ ووهلي شول ۱۱ او دَ اسرائیلو خلق له
مصفاه نه ووتل او په فلستیانو پسي وزغلیدل او دَ بیت کار تر

لاندِ پورې یې ووهل ۱۲ نو سموایل یو کڼې واخست او دَ مصفاه ۱۲
او دَ شین په مینځ کښ یې ودراوه او نوم دَ هغه یې ابن عزر وباله
او وې ویل چه تر دې پورې یهوه خمونږ پشتي کړې ده ۱۳ نو ۱۳
فلستیان په زنګنو شول او بیا زیات دَ اسرائیل په سرحد کښ
نه ننوتل او دَ خداوند لاس ټولې ورځې دَ سموایل په فلستیانو
باندِ وه ۱۴ او هغه ښهرونه چه فلستیانو له اسرائیل اخستلي وُو ۱۴
اسرائیل ته پستنه ورکړې شول له عقرون تر جات پورې او دَ
هغو حدّونه اسرائیل دَ فلستیانو له لاسه خلاص کړل او دَ
اسرائیل او دَ اموریانو په مینځ کښ صلح وشوه ۱۵ او سموایل دَ ۱۵
اسرائیل انصاف په ټولو ورځو دَ ژوندون کښ وکړ ۱۶ او په دوره ۱۶
به کال په کال تهٔ بیت ایل او جلجال او مصفاه ته او په هغو ټولو
مکانونو کښ یې دَ اسرائیل عدالت کاوه ۱۷ او دَ ده ستنیدل راماه ته ۱۷
وُو ځکه چه هلته کښ یې کور وه او هلته یې دَ اسرائیل عدالت
کاوه او هلته یې یوه مذبح خداوند ته بنا کړه ❊

## اتم باب

۱ او داسې وشوه چه سموایل سپین ږیرې شه نو خپل ځامن یې په ۱
اسرائیل باندِ قاضیان کړل ۲ او دَ ده دَ ځامنو نومونه دا دِي دَ ۲
هغه دَ مشر یوئیل او دَ دویم نوم ابیاه په بیرشبع کښ قاضیان
وُو ۳ او دَ هغه ځامن دَده په لارې نه تلل لیکن په ګټه پسې ۳
ګرزیدل او رشوت یې اخست او انصاف یې کږاوه
۴ او ټول سپین ږیري دَ اسرائیل راجمع شول او سموایل ۴
ته په راماه کښ راغلل ۵ او دوی ورته وویل ګوره ته سپین ږیرې ۵
یې او ستا ځامن ستا په لارې نه ځي اوس خمونږ دَپاره بادشاه
مقرّر کړه چه خمونږ عدالت کوي لکه چه ټول غیر قومونه ۶ او هغه ۶

خبره دَ سموایل په سترګو کښ بده وه چه دوي وویل چه مونږ
له بادشاه راکړه دَ عدالت کولو دَپارَ او سموایل خداوند ته دُعا
۷ وکړه ۷ او خداوند سموایل ته وویل دَ امّت آواز واوره په موافق
دَ ټول څه چه دوي درته واېي ځکه چه ته يې رد کړي نه يي بلکه
۸ زه يې رد کړي يم تاچه زه په دوي بادشاهي ونه کړم ۸ په موافق
دَ هغو ټولو کارونو چه دوي وکړل له هغي ورځي نه چه ما
دوي له مصر نه را وخېژول تر دي ورځي پوري او زه يې پرېښودلم
او دَ نورو خدايانو عبادت يې وکړ هم هسي دوي له تا سره عمل
۹ کوي ۹ او اوس دَ هغو آواز واوره مګر بي له دي چه ګواهي ورباندي
ورکړه او دستور دَ بادشاه ورته ځرګند کړه چه په هغو باندِ به
بادشاهي کوي

۱۰ ۱۰ او سموایل هغه ټولي خبري دَ خداوند هغه اُمّت ته
۱۱ چه ورنه يې بادشاه غوښت وويلي ۱۱ او ده وویل دا به دَ هغه
بادشاه دستور وي چه په تاسو باندِ به بادشاهي کوي ستاسو
ځامن به واخلي او دَ خپل ځان دَپارَ به يې مقرر کړي دَده دَ ګاډو
او دَده دَ سوارو دَپارَ او دَ هغه دَ ګاډو په مخ کښ به زغلي -
۱۲ ۱۲ او دَ خپل ځان دَپارَ به دوي مقرر کړي سرداران دَ زرګونو
او سرداران دَ پنځوسو او په يوي سره به يوي کوي او په لَو
سره به لَو کوي او دَدوي دَ جنګ وسلي او دَ هغه دَ ګاډو وسلي
۱۳ دَ جوړولو دَپارَ ۱۳ او ستاسي لونړه به واخلي چه حلوايانی او طباخياني
۱۴ او نانبايانی شي ۱۴ او ستاسو پټي او ستاسو تاکستانونه او ستاسو
دَ زيتون باغونه چه له ټولو نه ښه وي وا به يې خلي او خپل
۱۵ نوکرانو ته به يې ورکړي ۱۵ او ستاسو تخمونه او ستاسو دَ تاکستانونو
عُشر به واخلي او خپلو خادمانو ته او خپلو نوکرانو ته به يې
۱۶ ورکړي ۱۶ او ستاسو نوکران او ستاسو وينځي او ستاسو ښائسته

ځوانان او ستاسو خره به واخلي او په خپل کار به يې ولګوي
۱۷ ١٧ او ستاسو له ګډو نه به عُشر اخلي او تاسو به يې نوکران
۱۸ شئ ١٨ او په هغي ورځي کښې به تاسي دَ خپل بادشاه په سبب
چه تاسو دَ خپلو ځانونو دَپارَ غوره کړي دي چغي ووهئ او خداوند
۱۹ به په هغه ورځ کښې تاسو ته ځواب در نه کړي ١٩ ليکن هغه اُمّت
دَ سموايل دَ آواز له آوريدلو نه انکار وکړ او و ئې ويل نه بلکه
۲۰ په مونږ باندِ به بادشاه وي ٢٠ تاچه مونږ هم دَ ټولو غير قومونو
په شان شُو او بادشاه په مونږ باندِ انصاف کوي او چه ځمونږ
۲۱ په مخ کښې وزي او چه ځمونږ دَپارَ جنګونه وکړي ٢١ او سموايل دَ
اُمّت ټولي خبري واوريدلي او دَ خداوند په غوږونو کښې ئې خبره
۲۲ وکړه ٢٢ او خداوند سموايل ته و ويل دَدوي آواز واوره او يو بادشاه
په دوي باندِ بادشاه کړه او سموايل دَ اسرائيل خلقو ته
و ويل تاسو هر يو سړي خپل ښهر ته دروميُ +

# نهم باب

۱ ١ او له بنيامين يو سړي وه چه نوم ئې قِيس وه ځوي دَ ابيئيل
ځوي دَ صرور ځوي دَ بکور ځوي دَ افيح بنيامينې سړي جبار دَ قوت
۲ وه ٢ او دَ هغه ځوي وه او نوم ئې شاؤل ځوان او ښائسته او په
بني‌اسرائيل کښې يو سړي ور نه ښائسته نه وه هغه له اوږو نه
۳ به پورته له ټول اُمّت نه لوړ وه ٣ او دَ قِيس دَ شاؤل دَ پلار
خري ورکي شوي وي او قِيس خپل ځوي شاؤل ته وويل چه له
۴ ځان سره يو نوکر واخله او پاځه لاړ شه خري و لټوه ٤ او هغه
دَ افرائيم په کوهستان کښې تير شه او تر شاليشه په زمکه کښې
تير شه او و ئې نه موندلي او دَ شعليم په زمکه کښې تير شول
او نه وي او دَ بنيامين په زمکه کښې تير شول او و ئې نه موندلي

۵ ۵ هرکله چه دوي دَ صوف په زمکي کښ راغلل نو شاؤل هغه
نوکر ته چه ورسره وه وويل راشه چه وګرزو هسي نه چه پلار
۶ مِ خري پريږدي او څمونږ اندېښنه کوي ۶ او هغه ورته وويل
ګوره اوس په دي ښهر کښ مردِ خدا دې او هغه بزرګ سړي
دَي ټول څه چه هغه وايي ضرور کيږي راځه چه اوس مونږ هغه
له ورشو ګندِ وي چه راڅرګنده کړي هغه لار چه مونږ پرِ ځو
۷ ۷ نو شاؤل خپل نوکر ته وويل ګوره چه لاړ شو نو څه به
هغه سړي ته ورورو ځکه چه ډوډيِ څمونږ له لوښو کميږي او
پيشکښي نشته چه مردِ خدا له ئي ورورو مونږ څخه څه دِي؟
۸ ۸ او نوکر شاؤل ته بيا ځواب ورکړ او وئي ويل ګوره څما په
لاس کښ څلورمه دَ روپيِ شته دَي هغه به مردِ خدا له ورکړم
۹ چه هغه مونږ ته څمونږ لار څرګنده کړي ۹ وړاندِ په اسرائيل
کښ هرکله چه سړي به ته چه له الله نه تفحص وکړي نو ويل
به ئي راشه چه مونږ رؤيا ليدونکي ته لاړ شو ځکه چه هغه
ته چه اوس نبي وايي په وړاندِ به هغه رؤيا ليدونکي باله شه
۱۰ ۱۰ نو شاؤل خپل نوکر ته وويل چه ستا خبره ښه دَه راشه
چه لاړ شو او دوي هغه ښهر ته لاړل چه هلته مردِ خدا وه
۱۱ ۱۱ او چه دوي دَ ښهر په لوره وختل نو دوي جنکئِ وموندلي
چه دَ اوبو وکښلو ته وتلي نو ورته ئي وويل دلته کښ رؤيا
۱۲ ليدونکي شته دَي؟ ۱۲ او هغوي ورته ځواب ورکړ او وئي ويل
هو ګوره ستاسو په مخ کښ دَي اوس زر کـوئِ ځکه چه
نن ورځ ښهر ته راغي ولې چه نن ورځ دَ اُمّت دَ پارَ په لوړي
۱۳ کښ ذبح کيږي ۱۳ تاسو به ئي دَ ښهر په ننوتلو کښ دستي وموئِ
وړاندِ له هغه چه دوي لوړي ته دَ خوړلو دَ پارَ خيژي ځکه چه
اُمّت دَ هغه تر راتلو پوري نه خوري ځکه چه دي به دَ ذبحه

مبارکه کوي پس له هغه به ئې هغوي خوري چه را بللي شوي دي
اوس ورخيژئ ځکه چه په دا هسې ورځې به ئې وموم ۱۴ نو دوي ۱۴
ښهر ته وختل او چه دَ ښهر په منځ کښې راتلل نو گوره
سموايل دَ هغوي په مخ کښې ووت چه لوړې ته وخيژي
۱۵ او خداوند دَ سموايل غوږونه دَ شاؤل له راتلو نه يوه ۱۵
ورځ وړاند کشف کړل وئې ويل ۱۶ چه سحر په دې وقت کښې به ۱۶
يو سړې دَ بنيامين له زمکې نه درواستوم او ته به ئې مسحه کړې
چه زما په اُمّت اسرائيل باندې امير شي او زما اُمّت دَ فلستيانو
له لاسَ خلاص کړي ځکه چه ما خپل اُمّت کتلې دي ولې چه
دَ دوي چغې ما ته راغلې دي ۱۷ او هر کله چه سموايل شاؤل وليد ۱۷
نو خداوند ورته ځواب ورکړ گوره هغه سړې چه ما دَ هغه په
باب کښې تا ته ويلي دي هم دې به زما په اُمّت اختيار ولري -
۱۸ نو شاؤل سموايل ته دَ دروازې په منځ کښې نژدې شه او وئې ۱۸
ويل راته وښيه چه دَ رؤيا ليدونکي کور چرته دې ۱۹ او سموايل ۱۹
شاؤل ته ځواب ورکړ چه رويا ليدونکې زه يم زما دَ وړاند لوړې
ته وخيژه او نن ورځ به زما سره وخوري او صبا به دِ رخصت
کړم او ټول څه چه ستا په زړه کښې دي درو به ئې ښيم ۲۰ او ۲۰
دَ هغو خرو په باب چه له دريو ورځو نه ورکې شوي دي خيل
زړه مه لگوه ځکه چه موندلې شوي دي او دَ چا دَ پارَ ټول غوره
خيزونه دَ اسرائيل دي ستا دَ پارَ نه دي څه ؟ او ستا دَ پلار
دَ ټول کور دَ پارَ ۲۱ او شاؤل ځواب ورکړ وئې ويل زه بنيامينې ۲۱
نه يم څه ؟ دَ اسرائيل له فرقو نه زيات وړوکې او زما خيلخانه
دَ بنيامينې دَ فرقو له ټولو خيلخانو نه زياته وړوکې نه ده څه ؟
نو ولې ما ته دَ دي خبرو په شان خبرې کوې ۲۲ نو سموايل شاؤل ۲۲
او دَ هغه نوکر واخستل او خونې ته ئې راوستل او په سرد

بللي شوي ؤ لئِ خاص ځاي ورکړ او هغوي قريب دېرش سړِي وُو
۲۳ ۲۳ او سموايل باورچي ته وويل راکړه هغه بخره چه ما درکړي
دَه چه دَ هغي په باب کښ ما تا ته ويلي وُو چه ځان سره ئې
۲۴ کېږده ۲۴ او باورچي هغه ورون پورته کړ او هغه چه پرِ باندِ
وُو او په مخ کښ دَ شاؤل ئِې کېښود او وئِې ويل گوره هغه چه
کېښودلي شوي وه دَ ځان دَ وړاندِ ئِې کېږده و ئِې خوره ځکه چه
تر مقرر وقتَ پوري ستا دَپارَ ساتلي شوي دَي چه ما وويل ما
اُمّت را بللي دَي نو شاؤل په هغه ورځ سموايل سره وخوړل
۲۵ ۲۵ او چه دوي له لوړي نه ښهر ته راکوز شول نو دَ شاؤل
۲۶ سره ئِې په بام باندِ خبري وکړي ۲۶ او صبا وقتي پورته شول او
دَ سحر په ختلو کښ سموايل په بام شاؤل را وباله و ئِې ويل
پاځه چه روان دِ کړم او شاؤل پورته شه او دواړه هغه او
۲۷ سموايل باهر ووتل ۲۷ او چه دوي دَ ښهر په انتها کوزيدل
نو سموايل شاؤل ته وويل نوکر ته ووايه چه دَي زمونږ په
مخ کښ پوري شي او هغه پوري شه ليکن ته لږ څه ودرېږه
چه زه دَ خداوند کلام تا ته واوروم +

# لسم باب

۱ ۱ نو سموايل يوه ښيښه دَ تيلو واخسته او دَده په سر ئې
توي کړه او ښکل ئې کړ او و ئې ويل دا دَ دي دَپارَ نه دَي څه؟
۲ چه خداوند مسح کړي يي چه دَده په ميراث امير شي ۲ هرکله
چه ته له ما نه نن ورځ ځي نو دوه سړِي به دَ راحيل قبر
څخه وموي دَ بنيامين په سرحد په صلصح کښ او دوي به
درته ووايِي هغه خري چه ته ئې دَ لټولو دَپارَ تلي وي موندلي
شِوي دِي او گوره ستا پلار دَ خرو خبره پرېښي دَه او ستا دَپارَ

اندېښنه کوِي وايِي چه دَ خپل ځوي دَپارَ څه وکړم ٣ او ته به ٣
له هغه ځاي نه پورېشي او دَ تابور بلوطو ته به ورشي او هلته
به دري سړي درته حاضر شِي چه الله ته بيت‌ايل ته خيژِي يو
پورته کوونکي دَ دريو سيرليو او بل يو پورته کوونکي دَ دريو ګکوړو
دَ ډوډۍ او يو پورته کوونکي دَ زِقي دَ شرابو ٤ او دوي به ستا دَ ٤
سلامتيا سوال وکړِي او تا ته به دوه ګکوړِي دَ ډوډۍ درکړِي. او
ته به يې دَ دوي له لاسونو واخلي ٥ پس له هغه ته به دَ الله ٥
غونډۍ ته راشِي چه هلته ډېره دَ فلستيانو ده او داسي به وشِي
چه ته هلته ښهر ته ورځي نو يو ټولۍ دَ نبيانو به درسره مليا
شِي چه له لوړِي نه به راکوزيږِي او دَ دوي په مخ کښ به رباب او
طنبل او شپېلۍ او ستار وِي او هغوي به نبوت کونکي وِي ٦ او ٦
دَ خداوند روح به په تا بانډِ نازل شِي او ته به له دوي سره
نبوت کوي او ته به بل سړِي ته وګرزولي شي ٧ او هرکله چه دا ٧
نښي په تا بانډِ راغلي نو ته هسي وکړه لکه چه ستا لاس يې مومِي
ځکه چه الله له تا سره دَي ٨ او ته به ځما نه وړانډِ جلجال ته ٨
کوز شي او ګوره زه به تا ته درکوز شم چه سيځونکي قربانۍ وخيژوم
او دَ سلامتيا ذبحي ذبح کړم اوو ورځي به ته وار وکړِي تر هغه
پوري چه زه درشم او تا به پوه کړم چه څه به کوي ٩ او داسي ٩
وشول هرکله چه ده خپله شا وګرزوله چه له سموايل نه لاړ
شِي نو الله وله بل زړه ورکړ او هغه ټولي نښي هم هغه ورځ
راغللي
١٠ او چه دوي غونډۍ ته راغلل نو ګوره يو ټولۍ دَ نبيانو ١٠
ورمليا شه او په هغه بانډِ دَ خداوند روح نازل شه او دَ
هغو په منځ کښ يې نبوّت کاوه ١١ او داسي وشوه چه هغوي ټولو ١١
چه پرون او په وړانډِ يې پېژنده و يې ليد چه ګوره دي دَ نبيانو

سره نبوت کوي نو دَ اُمّت هر سړي خپل ملګري ته وويل چه
دَ قِيس په ځوي څه وشول شاؤل هم په نبيانو کښ دئ څه؟
١٢ ١٢ او يو دَ هغه ځاي له سړو نه ځواب ورکړ او وئ ويل چه
دَ هغه پلار څوک دئ په دي سبب دا مثال شه چه شاؤل
١٣ هم په نبيانو کښ دئ څه؟ ١٣ او هرکله چه نبوّت کول ئي ختم کړل
نو لوړي ته راغي
١٤ ١٤ او دَ شاؤل تره هغه ته او دَ هغه نوکر ته وويل
تاسو چرته تلي وئِ نو ده ورته وويل دَ خرو دَ لټولو دپاره او
١٥ چه مونږ وليدل چه نشته نو سموايل ته ورغلو ١٥ او دَ شاؤل
١٦ تره وويل راڅرګند کړه که نه چه سموايل تاسو ته څه وويل ١٦ نو شاؤل
خپل تره ته وويل مونږ ته ئي صاف راڅرګند کړل چه خري موندلي
شوي دِي او هغه خبره دَ بادشاهت په باب کښ چه سموايل
١٧ پرِ خبره کړي وه ورڅرګنده ئي نه کړه ١٧ او سموايل ټول امّت دَ
١٨ خداوند مصفاه ته راوباله ١٨ او ده بنِي اسرائيلو ته وويل خداوند
الله دَ اسرائيل داسي وايي ما اسرائيل له مصر نه راوخيژاوه
او تاسو مِ دَ مصريانو له لاسَ آزاد کړئِ او دَ هغو دَ ټولو
١٩ بادشاهتونو له لاسَ چه تاسو ئي تنګ کولئِ ١٩ ليکن تاسو نن
ورځ خپل الله رد کړ چه هغه تاسي له هغو ټولو بلاؤ او
تنګسياؤ خلاص کړي او تاسو ورته وويل چه په مونږ باندِ
بادشاه ودروه نو اوس دَ خداوند په مخ کښ خپل ځانونه
٢٠ ودروئ په موافق دَ خپلو فرقو او دَ خپلو زرګونو سره ٢٠ نو
سموايل ټولي فرقي دَ اسرائيل نژدي راوستلي او فرقه دَ بنيامين
٢١ ونيولي شوه ٢١ او هغه فرقي دَ بنيامين ده دَ خپلخانو سره نژدي کړه
نو خپلخانه دَ مطري ونيولي شوه او شاؤل بن قِيس ونيولي
٢٢ شه ليکن چه دوي هغه ولټاوه نو مونده نه شه ٢٢ نو له

دي سبب دوي له خداوندَ سوال وکړ چه سړي به دلته راشي
تر اوسه او خداوند و ویل چه ګوره هغه دَ اسباب په مینځ
۲۳ کښې ځان پټ کړي دَي ۲۳ او دوي وزغلیدل او له هغه
ځاي نه ئي راونیوه او چه دَي دَ اُمّت په مینځ کښې ودریده نو
۲۴ له ټول اُمّت نه لوړ وه له اوږي نه په پورته ۲۴ او سموایل
ټول امّت ته وویل تاسو ګورئ هغه چه خداوند غوره کړ
چه دَ هغه په شان په ټول اُمّت کښې نشته او ټول اُمّت
ناري کړي و ئي ویل چه بادشاه دِ ژوندي وِي
۲۵ ۲۵ او سموایل اُمّت ته دَ بادشاهت په دستور خبره
وکړه او په کتاب کښې ئي ولیکله او دَ خداوند په مخ کښې ئي کېښود
۲۶ او سموایل دَ ټول اُمّت هر سړي خپل کور ته واستاوه ۲۶ او شاؤل
هم خپل کور ته جبعي ته لاړ شه او ورسره هغه فوځ وه چه
۲۷ دَ هغو زړونه الله مسح کړي وُو ۲۷ او بني بلیعالو وویل دَي به
موږ ځرنګ خلاص کړي او سپک ئي کړ او هیڅ پیشکښي ئي ورته
را نه وړه لیکن دي چپ شه ‡

# یولسم باب

۱ ۱ او ناحش عموني وخوت او په یابیش جلعاد ئي ډیره وکړه او ټولو
سړو دَ یابیش ناحش ته وویل ځمونږ سره وعده پریکړه نو مونږ
۲ به ستا خدمت کوُو ۲ او ناحش عموني ورته وویل چه په دي
به له تاسو سره پریکړم چه ستاسو ټولي ښیئ سترګي وکنودلي شي
۳ اوچه په ټول اسرائیل پېغور کېږدم ۳ او سپین ږیرو دَ یابیش ور
ته وویل اوو ورځي مونږ پرېږده چه قاصدان په ټول سرحد دَ
اسرائیل کښې واستوُو او بیا که ځمونږ خلاصوونکي نه وِي نو
۴ مونږ به تاسو ته در ووزُو ۴ نو قاصدان دَ شاؤل جبعي ته

راغلل او دغه خبري ئي دَ اُمّت په غوږونو کښې وويلي او ټول
۵ اُمّت خپل آوازونه پورته کړل و ئي ژړل ۵ او ګوره شاؤل په
غوايانو پسي له پټي نه راته او شاؤل وويل چه په اُمّت څه
شوي دي چه ژاړي نو دَ يابيش دَ سړو خبره ئي ورته تيره کړه
۶ ۶ چه دا خبري ئي واوريدلي نو دَ الله روح په شاؤل حمله وکړه
۷ او غضب دَ هغه ډير ګرم شه ۷ او ده جوړه دَ غوايانو واخستله
او ټوټې ټوټې ئي کړله او په ټول سرحد دَ اسرائيل ئي دَ استاځي
په لاس واستولي و ئي ويل هغه څوک چه په شاؤل او په سموايل
پسي را ونه وزي هم هسي به دَده دَ غوايانو سره عمل وکړي شي او
دَ خداوند هيبت په اُمّت پريوت او دَ يوه سړي په شان ووتل
۸ ۸ او ده په بازق کښې وشميرل او بني‌اسرائيل دري سوه زره وو
۹ او دَ يهودا سړي ديرش زره ۹ او دوي هغو استاځو ته چه راغلل
وويل چه تاسو دَ يابيش‌جلعاد سړو ته ووايي صبا چه څه وخت
نمر تود شي ستاسو خلاصون به وشي او استاځي راغلل او دَ
۱۰ يابيش سړو ته ئي ښکاره کړه او هغوي خوشحال شول ۱۰ نو دَ يابيش
سړو وويل صبا به تاسو ته در ووزو او تاسي له مونږ سره داسي
۱۱ عمل وکړئ لکه چه ستاسو په سترګو کښې ښه وي ۱۱ او په صبا
داسي وشوه چه شاؤل هغه اُمّت په دريو ډلو وويشه او دوي
دَ ډيري په مينځ کښې دَ سحر په پهر کښې راغلل او عمونيان ئي
دَ ورځي تر غرمي پوري ووهل او داسي وشوه چه پاتي شوي هسي
۱۲ تار پتار شول چه دوه په هغه کښې يوځاي پاتي نه وو ۱۲ او اُمّت
سموايل ته وويل هغه څوک ويونکي وو چه شاؤل به په مونږ
باندِ بادشاهي وکړِي څه ؟ مونږ ته هغه سړي راکړئ چه مړه ئي
۱۳ کړو ۱۳ او شاؤل وويل په دي ورځ دِ يو سړي مړ نه کړي شي
۱۴ ځکه چه نن ورځ خداوند په اسرائيل کښې خلاصون وکړه ۱۴ او

سموایل هغه امّت ته وویل راشئ چه مونږ جلجال ته لاړ شو
او هلته بادشاهت تازه کړو ۱۵ او ټول امّت جلجال ته لاړ او ۱۵
هلته ئې د خداوند په حضور په جلجال کښې شاؤل بادشاه کړ
او هلته د سلامتیا ذبیحې د خداوند په حضور کښې ئې ذبح کړې
او هلته شاؤل او ټولو سړو د اسرائیل ډېره خوشحالي وکړه ❊

# دولسم باب

۱ او سموایل ټول اسرائیل ته وویل ګوره په هغو ټولو کښې چه ۱
تاسو ماته وویل ما ستاسو قول واورېده او په تاسو باندې ما
یو بادشاه مقرّر کړ ۲ او اوس ګوره بادشاه ستاسو د وړاندې ګرزي ۲
او زه بوډا او سپین ږیری یم او زما ځامن تاسو سره دي او زه له
خپلې ځوانئ نه تر نن ورځې پورې ستاسې د وړاندې ګرزېدلی یم
۳ ګوره زه حاضر یم په ما د خداوند د وړاندې او د ده د مسیح ۳
د وړاندې ګواهي ولئ چه د چا غوایه ما نیولې دې یا د چا خر ما نیولې
دې یا څوک ما رټولې دې یا څوک ما مات کړې دې یا د چا له
لاسه ما رشوت اخستلې دې چه په هغه باندې سترګې پټې کړم
او زه به ئې تاسو ته بېرته درکړم ۴ او دوی وویل تا په مونږ ظلم ۴
کړې نه دې او نه دې مات کړې یو او نه دې د هیچ سړي له
لاسه څه اخستلې دي ۵ نو ده ورته وویل چه خداوند په تاسو ۵
ګواه دې او د هغه مسیح نن ورځ ګواه دې چه زما په لاس کښې
مو هیڅ شې موندلې نه دې او دوی وویل چه ګواه دې ۶ او سموایل ۶
اُمّت ته وویل چه هغه خداوند دې چه موسی او هارون ئې
مقرّر کړل او چه ستاسو پلارونه ئې له مصر نه را وخېژول ۷ نو ۷
اوس ودرېږئ چه له تاسو سره د خداوند په مخ کښې دعوی وکړم
د خداوند د ټولو صداقتونو په باب چه له تاسو سره او ستاسو

٨ له پلارونو سره ئې وکړل ٨ هرکله چه يعقوب په مصر کښ راغئ
او ستاسو پلارونو خداوند ته چغې وهلې نو خداوند موسیٰ او
هارون واستول او ستاسو پلارونه ئې له مصر نه راوويستل او
٩ په دې مکان کښ ئې واوسول ٩ ليکن دوي خداوند خپل الله
هير کړ نو دوي ئې د سيسرا سردار د فوځ د حصور په لاس کښ
خرڅ کړل او د فلستيانو په لاس کښ او د مواب د بادشاه په
١٠ لاس کښ او دوي ورباندې جنګ وکړ ١٠ او دوي خداوند ته چغې
وکړې او وې ويل مونږ خطا کړې ده ځکه چه خداوند مو پرېښودلې
دې او د بعليم او د عستاروت عبادت مو کړې دې او اوس مو
د خپلو دښمنانو له لاسَ خلاص کړه او مونږ به ستا عبادت وکړو
١١ ١١ نو خداوند. يرُبعل او بيدان او يفتاح او سموايل واستول او
تاسو ئې د خپلو ټولو چاپېره دُښمنانو له لاسه خلاص کړئ او
١٢ تاسو په امانت اوسيدلئ ١٢ او چه تاسو وليدل چه ناحش بادشاه
د بنيعمون په تاسو باندې راغئ تاسو ما ته وويل نه بلکه بادشاه به
په مونږ باندې بادشاهي وکړي هرکله چه خداوند ستاسو الله ستاسو
١٣ بادشاه وه ١٣ او اوس ګوره هغه بادشاه چه غوره کړې مو دې
او چه غوښتلې مو دې او ګوره خداوند په تاسو باندې بادشاه ودراوه
١٤ ١٤ نو که تاسي د خداوند ويره وکړئ او د ده عبادت وکړئ او
د ده قول واورئ او د خداوند د حکم په خلاف ياغي نه شئ نو
تاسو او هغه بادشاه هم چه په تاسو باندې بادشاهي کوي د خداوند
١٥ خپل الله پيروان شئ ١٥ ليکن که د خداوند قول وا نهورئ او د
خداوند د حکم په خلاف ياغي شئ نو د خداوند لاس به په
١٦ تاسو باندې راشي لکه چه ستاسو په پلارونو وه ١٦ نو اوس ودرېږئ
او دا لويه خبره وګورئ چه خداوند به ئې ستاسو د سترګو د وړاندې
١٧ وکړي ١٧ نن ورځ د غنمو لو نه دې څه ؟ زه به خداوند ته ناري

وکړم او هغه به رعدونه او باران وکړي او تاسو به پوهه شئ
او وبه وبینئ چه ستاسو شرارت لوي دي چه تاسو دَ خداوند
په سترګو کښ کړي دَي چه خپل ځانونو لره مو بادشاه غوښتلي
۱۸ دَي ۱۸ نو سموایل خداوند وباله او خداوند رعدونه او باران
هم په هغي ورځي وکړل او ټول اُمّت له خداوندَ او له سموایلَ
۱۹ ډیر وویریدل ۱۹ او ټول اُمّت سموایل ته وویل خپل الله
ته دَ خپلو بندګانو دپارَ دُعا وکړه چه مونږ مړه نه شُو ځکه
چه مونږ په خپلو ټولو خطاوو باندِ دا بدِي زیاته کړله چه دَ
۲۰ ځان دَپارَ مو بادشاه وغوښت ۲۰ او سموایل امّت ته وویل مه
ویریږئِ تاسو دا ټول شرارت کړي دَي لیکن دَ خداوند له پیروئِ
نه مه لري کیږئِ او دَ خداوند عبادت وکړئِ په خپلو ټولو زړونو
۲۱ سره ۲۱ او تاسو مه لري کیږئِ چه تاسو به هغو باطلو پسي شئِ
چه فائده نه رَسَوِي او خلاصولي نه شِي ځکه چه دوي باطل دِي
۲۲ ۲۲ ځکه چه خداوند به په خپل اُمّت پرې نږدِي دَ خپل لوي نوم په
وسیلي سره ځکه چه دَ خداوند خوښه شوه چه تاسو دَ ځان
۲۳ دَپارَ امت وګرزوِي ۲۳ او ځما په باب دِ داسي و نه شِي چه دَ
خداوند په خلاف خطا وکړم چه ستاسو دَپارَ له دُعا کولو نه
قرار شم لیکن زه به تاسو ته هغه نیکه او سمه لار در وښیم
۲۴ ۲۴ تش دَ خداوند ویره وکړئِ او دَ هغه عبادت وکړئِ په رښتیا
سره په خپلو ټولو زړونو سره ځکه ګورئِ چه څرنګ لوي ځیزونه
۲۵ هغه ستاسو دَپارَ کړِي دِي ۲۵ لیکن که تاسو شر شرارت وکړئِ نو
تاسو او ستاسو بادشاه به هم سره برباد شئِ ✣

# دیارلسم باب

۱ ۱ شاؤل دَ دیرشو کالو وه دَده په بادشاه کیدلو باندِ او چه دَه

۲ په اسرائيل دوه کاله بادشاهي وکړه ۲ نو شاؤل درې زره له
اسرائيل نه غوره کړل او دَ شاؤل سره دوه زره په مکماس او
دَ بيت‌ايل په غره کښ وُو او يو زر له يونتن سره دَ بنيامين په
جبعه کښ وُو او باقي خلق ئې هر سړي خپلي کېږديُ ته
۳ واستوه ۳ او يونتن دَ فلستيانو لښکر وواهه چه په جبعه
کښ وه او فلستيانو واوريدل او شاؤل ټُوريُ وغږوله په ټوله
۴ زمکه کښ و ئې ويل عبرانيان دِ واوري ۴ او ټول اسرائيل واوريدل
چه شاؤل دَ فلستيانو لښکر وواهه او دا هم چه فلستيانو له
اسرائيل نه نفرت وکړ او اُمّت په شاؤل پسي جلجال ته
راجمعَ شه
۵ ۵ او فلستيان جمعَ شول چه دَ اسرائيل سره جنګ وکړي
دېرش زره ګاډي او شپږ زره سواره او خلق لکه دَ شګي چه
دَ قهردرياب په غاړي په کثرت سره وي او راوختل او په
مکماس کښ ئې ډېره وکړه دَ بيت‌آون په مشرقي طرف کښ -
۶ ۶ او چه دَ اسرائيل سړو وليدل چه دوي په تنګسيا کښ دِي
خکه چه اُمّت مظلوم وه نو اُمّت په غارونو کښ او په ځنګلونو
کښ او په ګړونو کښ او په سمڅو کښ او په کوهيو کښ
۷ ځانونه پټ کړل ۷ او ځني عبرانيان په يردن پوري وتل دَ جد
او دِ جلياد زمکي ته ليکن شاؤل تر اوسه په جلجال کښ وه
او ټول اُمّت ورپسي رېپېدونکيَ وه
۸ ۸ او هغه اوه ورځي قرار شه دَ سموايل دَ هغه مقرّر
وقت په موافق او سموايل جلجال ته را نه غي او اُمّت ورنه
۹ تار بتار شه ۹ او شاؤل وويل هغه سيځونکي قربانيِ او هغه
دَ سلامتيا قربانيِ را نژدي کړيِ او ده سيځونکي قرباني وخېژوله
۱۰ ۱۰ او داسي وشوه چه ده دَ سيځونکي قربانيِ خېژول ختم کړل نو

کوره چه سموایل راغي او شاؤل دَده دَ استقبال دَپارَ ووت
۱۱ چه ئي مبارک کړي ۱۱ او سموایل وویل چه څه دِ کړي دِي او
شاؤل وویل چه ما ولیدل چه هغه اُمّت له ما نه تار بتار
کیږي او چه ته په مقرري ورځي رانغلي او چه فلستیان په
۱۲ مکماس جمع کیدل ۱۲ نو ما وویل چه اوس به فلستیان ما ته
جلجال ته راکوز شي او ما دَ خداوند مخ ته منّت ونه کړ نو ما
۱۳ خپل ځان ټینګ کړ او سیځونکي قرباني مِ وخیژوله ۱۳ او سموایل
شاؤل ته وویل چه تا احمقي کړي دَه تا دَ خداوند خپل الله
فرمان ساتلي نه دَي چه درته ئي وفرمایل ولي چه اوس به
خداوند ستا بادشاهت په اسرائیل باندِ تر ابدَ پوري ثابت
۱۴ کړي وه ۱۴ او اوس به ستا بادشاهت قایم نه کړي شي چه
خداوند دَ خپل ځان دَپارَ یو سړي دَ خپل زړه په موافق
ولټاوه او خداوند هغه مقرّر کړي دَي چه دي دَده په اُمّت باندِ
امیر شي ځکه چه تا هغه څه چه خداوند درته فرمایلي دِي
ساتلي نه دِي
۱۵ ۱۵ او سموایل پورته شه له جلجال نه دَ بنیامین جبعي
ته ووت او شاؤل هغه اُمّت چه ورسره موجود وه وشمیره
۱۶ قریب شپږ سوه سړي وُو ۱۶ او شاؤل او یونتن ځوي ئي او
اُمّت چه ورسره موجود وه دَ بنیامین په جبعه کښ او سیدل
۱۷ او فلستیان په مکماس کښ ډیره شول ۱۷ او شوکونکي دَ فلستیانو
له ډیري نه ووتل په دریو ډلو کښ یوه ډله وګرزیده دَ عُفره
۱۸ لاري ته دَ شوعال زمکي ته ۱۸ او بله ډله دَ بیتِ حورون لاري ته
وګرزیده او بله ډله وګرزیده دَ هغه سرحد لاري ته چه په
طرف دَ کندي دَ صبوعیم ده دبیابان و خواته نضرګاه دي
۱۹ ۱۹ نو دَ ټول اسرائیل په زمکه کښ لوهار موندي نه شه

ځکه چه فلستیانو وویل چه هسې نه وِي چه عبرانیان توري
۲۰ یا بلّي جوړې کړِي ۲۰ لیکن ټول اسرائیل به فلستیانو ته کوز کیدل
هر سړِي به خپل سَسپار او خپل یُوم او خپل تبر او خپله سَکوْ
۲۱ چه تیره کړِي ۲۱ لیکن دوي یو سوهان دَ سسکورو دَپارَ او دَ
یومونو دَپارَ او دَ درې غاښو دَپارَ او دَ تبرونو دَپارَ او دَ چوکو
۲۲ دَ تیره کولو دَپارَ لاره ۲۲ او داسي وشوه دَ جنګ په ورځ کښ چه نه
توره نه بلّه دَ ټول اُمّت په لاس کښ موندلي شوه چه دَ شاؤل
او دَ یونتن سره وُو لیکن شاؤل ځنه او یونتن دَده ځوي ځنه موندلي
۲۳ شول ۲۳ او دَ فلستیانو لښکر دَ مکماس درې ته ووت ❖

# څوارلسم باب

۱ آ او په یوه ورځ داسي وشول چه یونتن دَ شاؤل ځوي هغه ځوان
ته چه دَده وسلې ئې پورته کوله وویل راشه چه پورې وزو دَ
فلستیانو لښکر ته چه پورې غاړه هلته دَي لیکن خپل پلار ئې
۲ خبر نه کړ ۲ او شاؤل دَ جبعې په آخر کښ اوسیده دَ هغه انار دَ
وَنې دَ لاندِ چه په مغرون کښ ده او هغه اُمّت چه ورسره
۳ وه قریب شپږ سوه سړِي وُو ۳ او اخیاه دَ اخیطوب ځوي
وړور دَ ایکابود دَ فنیحاس ځوي دَ عیلّي ځوي کوهین دَ خداوند
په شیلوه کښ آفود آغوستونکي وه او اُمّت نه پوهیده چه
۴ یونتن تلي دَي ۴ او دَ هغو درو په مینځ کښ چه یونتن دَ فلستیانو
په لښکر باندِ دَ پورې وتلو دَپارَ لټاوه دَ کتې دَ غاښي په یو
طرف وه او دَ کتې دَ غاښي په بل طرف وه او دَ یوه نُوم بوصیص
۵ وه او دَ بل نُوم سنّه ۵ هغه یو غاښي ستنه وه په شمال
طرف په مخامخ دَ مکماس او هغه بل په جنوب طرف په مخامخ
۶ دَ جبعې ۶ او یونتن خپل ځوان ته چه دَده وسله ئې پورته کوله

و ویل راشه چه مونږ پوري ورزو دَ دغي نامختونو لښکر ته
کُندِ خداوند ځمونږ دَپارَ کار وکړي ځکه چه خداوند ته هیڅ
کرانه نه دَه چه په ډیر یا په لږ سره خلاصون ورکوي ۷ او دَده ۷
وسله پورته کونکي ورته وویل هغه ټول څه چه ستا په زړه
کښ وِي وکړه وګرزه ګوره ستا دَ زړه په سوافق در سره یم
۸ او یونتن وویل ګوره مونږ دي خلقو ته پوري وزو او وربانه ۸
خپل ځانونه ځرګند کړو ۹ که چري دوي مونږ ته داسي وواي ۹
چه ودریږئِ تر هغه پوري چه مونږ درشو نو مونږ به په
خپل ځاي ودریږو او هغوي ته به نه ورختیږو ۱۰ او که دوي ۱۰
داسي وواي چه مونږ ته را وختیږئِ نو مونږ به ور وختیږو ځکه
چه خداوند ځمونږ په لاس کښ راکړي دِي او دا به مونږ ته
نښه وِي ۱۱ او دوي دواړه دَ فلستیانو لښکر ته ځانونه ورځرګند ۱۱
کړل او فلستیانو وویل ګوره عبرانیان له هغو سمځو نه چه
ځانونه ئي هلته پټ کړي دِي راوزي ۱۲ او دَ لښکر خلقو یونتن ۱۲
او دَده وسله پورته کونکي ته ځواب ورکړ او وئي ویل مونږ ته
را وختیږئِ او مونږ به تاسو په یوي خبري پوه کړو او یونتن
خپل وسله پورته کونکي ته وویل چه ما پسي راختیږه ځکه چه
خداوند دَ اسرائیل په لاس کښ ورکړي دِي ۱۳ او یونتن په ۱۳
خپل لاسونو باندِ او په خپلو پښو باندِ وختوت او دَده وسله
پورته کوونکي ورپسي او دوي دَ یونتن په مخ کښ پریوتل او
دَده وسله پورته کونکي ورپسي ووژلل ۱۴ او دا اول وهنه وه ۱۴
چه یونتن او دَده وسله پورته کوونکي ووهله قریب شل
سړي وُو دننه لکه چه نیمه کرښه اوږده په زمکه دَ یوجریب
کښ ۱۵ او په ډیره کښ ریږدنه وَه په پټي کښ او په ټول ۱۵
قوم کښ او لښکر او هغه شوکونکي ئي هم وریږدل زمکه هم په

۱۶ زلزله شوه نو له الله نه لویه رپید نه شوه ۱۶ او پهره دارانو
دَ شاؤل دَ بنیامین په جبعه کښ وکتل او کوره چه هغه تولي
وِیلي کیږي او هغوي هلته تلل
۱۷ ۱۷ او شاؤل هغه اُمّت ته چه ورسره وه وویل چه
اوس وشمیرئ او وګورئ څوک له مونږ نه تلي دي او چه
دوي وشمیرل نو یونتن او دَده وسله پورنه کونکي نه وو
۱۸ ۱۸ او شاؤل اخیاه ته وویل چه دَ الله صندوق رانژدي کړه
ځکه چه دَ الله صندوق په هغه ورځ دَ بني‌اسرائیلو سره
۱۹ وه ۱۹ او داسي وشوه چه شاؤل لا تر اوسه له کوهین سره
خبره کوله او هغه شور چه دَ فلستیانو په ډیره کښ وه
زیاتیده او ډیریده او شاؤل کوهین ته وویل لاس لري کړه
۲۰ ۲۰ او شاؤل او ټول اُمّت چه ورسره وه راجمع شول او جنګ
ته راغي او ګوره دَ هر سړي توره په خپل دوست وه ډیر لوی
۲۱ زوږ وه ۲۱ او عبرانیان چه په وړاندنیو وقتونو کښ له فلستیانو
سره وُو چه ورسره په ډیري ته شا او خوا ختل دوي هم دَ
۲۲ اسرائیل سره شول چه دَ شاؤل او یونتن سره وو ۲۲ او ټولو
سړو دَ اسرائیل چه خپل ځانونه به يُ دَ افرائیم په کوهستان
کښ پټول واوریدل چه فلستیان تښتي نو دوي هم په جنګ
۲۳ کښ ورپسي وزغلیدل ۲۳ نو خداوند په هغه ورځ اسرائیل
۲۴ خلاص کړ او جنګ دَ بیت‌آون طرف ته تیر شه ۲۴ او دَ اسرائیل
سړي په هغه ورځ تنګ شول لیکن شاؤل اُمّت ته قسم ورکړ
وئي ویل چه ملعون دِ وِي هغه سړئ چه تر نمابنام پوري ډوډئ
وخوري چه له خپلو دُښمنانو نه بدله واخلم او ټول اُمّت
۲۵ ډوډي ونه خکله ۲۵ او ټول اُمّت ګنړ بنړ ته راغي او دَ پټي
۲۶ په مخ ګبینه وه ۲۶ او چه اُمّت هغه ګنړ بنړ ته راغي نو ګوره

کبینه ښخیده لیکن یهیچا خپل لاس خپلي خولې ته اوږد نه کړ ځکه
چه اُمّت له هغه قسمَ ویریده۔ ۲۷ لیکن یونتن آوریدلې نه وُو چه ۲۷
دَ هغه پلار اُمّت ته قسم ورکړ نو ده دَ هغه لښتي سرچه دَده په
لاس کښې وه اوږد کړ او دَ کبینه په ښپیاکي ني ډوب کړ او خپل لاس
ئې په خپلي خولې ولګاوه او دَده سترګي رڼا شولي ۲۸ او یو سړي ۲۸
له خلقو نه ځواب ورکړ و ئې ویل ستا پلار اُمّت ته قسم ورکړ
و ئې ویل ملعون دِ وِي هغه سړَي چه نن ورځ ډوډئِ وخوري او
اُمّت ستړي شه ۲۹ نو یونتن وویل ځما پلار زمکه و ربړوله ګورئِ ۲۹
چه ځما سترګي څرنګ روڼي شولي چه ما دَدي کبینه نه لږ څه
وڅکل ۳۰ نو څومره ډیر به ښه وُو که چري نن ورځ اُمّت دَ خپلو ۳۰
دُښمنانو له لوټ نه چه دوي وموندل په ښه شان خوړلي
وي ځکه چه اوس څو ډیره وهنه به فلستیانو کښې و نه شوه
۳۱ او هم په هغه ورځ هغوي له مکماس نه تر ایالونَ پوري فلستیان ۳۱
ووهل او اُمّت ډیر ستړي شه ۳۲ او هغه اُمّت په لوټ باندِ ۳۲
مشغول شول او ګډوري او سخوندران او سخي ئې واخستل او
په زمکه ئې ذبح کړل او هغه اُمّت له وینو سره وخوړل ۳۳ او ۳۳
شاؤل ته ئې ښکاره کړه و ئې ویل چه ګوره اُمّت دَ خداوند خطا
کوِي چه له وینو سره خوري او ده وویل تاسو ټګي کړي دَه نن
ورځ ما ته لوئ کاڼي را وړغړوئِ ۳۴ او شاؤل وویل تاسو دَ اُمّت ۳۴
په منځ کښې خواره شئِ او ورته ووائِ دلي دِ ماته هر یو سړي
خپل سخوندر راتږدي کړي او هر یو سړي دِ خپل ګډوري او په
دي ځاي کښې ئې ذبح کړئِ او و ئې خورئِ او دَ خداوند خطا
مه کوئِ دَ وینو په خوړلو سره او ټول اُمّت هر یو سړي خپل
سخوندر دَده په لاس کښې هغه شپه راوړ او هلته ئې ذبح
کړل ۳۵ او شاؤل خداوند ته یوه مذبح بنا کړه هم هغه اوّل ۳۵

مذبح وه چه ده خداوند ته بنا کړه
۳۶ ۳۶ او شاؤل وویل چه مونږ دِ په فلستیانو پسي دَ
شپي کوز شُو او دَ صبا تر رونبنائي پوري دِ ئي لوټ کړو او په
هغوي کښ دِ یو سړي نه پرېږدُو او دوي و وویل ټول چه ستا
په سترګو کښ ښه وِي وئي کړه او هغه کوهین وویل مونږ دِ
۳۷ دلې الله ته رانژدي شُو ۳۷ او شاؤل الله ته سوال وکړ چه زه
دِ په فلستیانو پسي کوز شم ته به دوي دَ اسرائیل په لاس
کښ ورکړي څه ؟ لیکن په هغه ورځ کښ ئي ځواب ورنه کړ
۳۸ ۳۸ او شاؤل وویل دلې رانژدي شئ اي ټولو ملکانو دَ اُمت
۳۹ او پوه شئ او کوري چه دا خطا نن ورځ په څه وشوه ۳۹ ځکه
چه هغه یهوه حي دَي چه دَ اسرائیل خلاصونکي دَي اګر
که په یونتن ځما په ځوي کښ وِي نو ضرور به په مرګ مړ
۴۰ شي او دَ ټول اُمت په مینځ کښ ځواب ورکونکي نه وه ۴۰ نو
ده ټول اسرائیل ته وویل چه تاسو یوه خوا شئ او زه او
یونتن ځما ځوي به په بل خوا او اُمت شاؤل ته وویل چه هسي
۴۱ وکړه لکه چه ستا په سترګو کښ ښه وِي ۴۱ او شاؤل خداوند
الله دَ اسرائیل ته وویل حق ښکاره کړه او شاؤل او یونتن
۴۲ ونیولي شه او اُمت خلاص شه ۴۲ او شاؤل وویل ځما په
مینځ او دَ یونتن په مینځ کښ واچوئ او یونتن ونیولي شه
۴۳ ۴۳ او شاؤل یونتن ته وویل ما ته وښیه چه څه دِ کړي
دِي او یونتن ورته ښکاره کړ او وئي ویل په ځکه سره مِ
وڅکل دَ دَغي لښتي په سر چه ځما په لاس کښ وه لږ څه
۴۴ ګبینه او ګوره مړ به شم ۴۴ او شاؤل وویل الله دِ داسي
وکړي او له دېنه زیات لیکن اي یونتن ته به په مرګ سره
۴۵ ومري ۴۵ او هغه اُمت شاؤل ته وویل چه یونتن به مړ شي

چه دا لوي خلاصون ئې په اسرائيل کښې کړي دَي هسي دِ نه وِي
يهوه حَي دَي چه دَ هغه دَ سر يو ويښته به زمکې ته
پرې نه وزِي ځکه چه ده نن ورځ له الله سره کار کړي دَي او
٤٦ هغې اُمت يونتن آزاد کړ او مړ نه شه ٤٦ نو شاؤل په فلستيانو
پسي وخوت او فلستيان خپل مکان ته لاړل
٤٧ ٤٧ او شاؤل بادشاهت په اسرائيل واخست او له خپلو
ټولو دُښمنانو سره ئې گير چاپير جنګ وکړ په موآب او په بنيعمون
او په ادوم او په بادشاهانو دَ صوباه او په فلستيانو او په ټولو
٤٨ چه ئې مخ ورگرزاوه دهشت ئې پرِ راوړ ٤٨ او مړانه ئې وکړه او
عماليقيان ئې ووهل او اسرائيل ئې دَ هغو له لاسونو نه آزاد کړ
چه شوکول به ئې
٤٩ ٤٩ او دَ شاؤل ځامن دا وُو يونتن او يشوي او ملکيشوع
او نومونه دَده دَ دواړو لونړو دَ مشرَي نوم ميرب او دَ کشري نوم
٥٠ ميکال ٥٠ او نُوم دَ ښځې دَ شاؤل اخينوعم لُور دَ اخيماعص او دَده
٥١ دَ فوځ دَ سردار نوم ابنير دَ نير ځوي تره دَ شاؤل ٥١ او قيش
دَ شاؤل پلار وه او نير دَ ابنير پلار ځوي دَ ابئيل وه
٥٢ ٥٢ او ټولي ورځي دَ شاؤل په فلستيانو باندِ سخت جنګ
وه او چه شاؤل هر جبار سړي او هر دَ قوت سړي وليد نو خپل
ځان ته ئې راکښه *

# پنځلسم باب

١ ١ او سموايل شاؤل ته وويل چه زه خداوند واستولم چه تا
دَده په اُمت اسرائيل باندِ بادشاه مسح کړم نو اوس دَ خداوند
٢ دَ کلام آواز واوره ٢ خداوند دَ لوښکرونو داسي وائي ما دَ هغه
چه عماليق اسرائيل سره وکړ تفحص وکړ چه ورته ئې په لاره
٣ کښې ځان تيټک کړ چه دي له مصر نه وخوت ٣ اوس دروه

عمالیق ووهه او ټول څه چه دَ هغه وِي حرم ئي کړه او پر باندِ
تحمل مه کوه او له سړي نه تر ښځي پوري او له هلک تر رودونکي
پوري او له غوایه نه تر ګډي پوري او له اوښ تر خره پوري
مړه کړه
۴ ۴ او شاؤل اُمت خبر کړ او په طلایم ئي وشمیره دوه
۵ سوه زره پلي او لس زره سړي دَ یهوداه وُو ۵ او شاؤل دَ
۶ عمالیق ښهر ته ورغي او په کندي کښ ئي پسوني وکړه ۶ او
شاؤل قینیانو ته ووئیل دروميِ لري شئِ کوز شئِ دَ عمالیقي له مینځ
نه هسي نه چه تاسو ورسره نیست کړم ځکه چه تاسو مهرباني
وکړه ټول بنيِ‌اسرائیل سره چه دوي له مصر نه ختل او قینیان
۷ دَ عمالیق له مینځ لري شول ۷ او شاؤل عمالیق ووهل له
۸ حویلاه نه تر هغه چه شور ته راځي دَ مصر په مخ کښ ۸ او
اُجاج بادشاه دَ عمالیق ئي ژوندي ونیو او ټول خلق ئي دَ
۹ توري په مخ ورک کړل ۹ لیکن شاؤل او اُمت په اُجاج او په
ښو کډورو او په غوایانو او په څربو او په وریو او په ټولو ښو څیزونو
تحمل وکړ او په حرمولو ئي رضا نه شوه او ټول مالونه چه
سپک او ناکاره وُو هغه ئي حرم کړل
۱۰ ۱۱ ۱۰ نو دَ خداوند کلام په سموایل باند شه وئي ویل ۱۱ زه
پښیمان یم چه ما شاؤل په بادشاهئ مقرّر کړ ځکه چه دَي
ځما له پیروي کولو نه جاروتلي دَي او ځما حکمونه ئي قایم نه کړل
او سموایل غُصّه شه او ټوله شپه ئي خداوند ته چغي کولي
۱۲ ۱۲ او سموایل دَ شاؤل دَ ملیاکیدلو دَپارَ په صبا کښ سحر
وقتي پورته شه او سموایل ته څرګند کړي شوه په دي ویلو
چه شاؤل کرمل ته راغي او ګوره یوه ستن ئي دَ خپل ځان
دَپارَ ودروله او وګرزیده او تیر شه او جلجال ته کوز شه

۱۳ ١٣ او سموایل شاؤل ته راغي او شاؤل ورته وویل چه ته دِ
۱۴ له خداوندَ سبارک شي ما دَ خداوند کلام قایم کړ ١٤ او سموایل
ووېل چه دا څه بَین بَین دَ رمي دَي څما په غوږونو کښ اورمباړه
۱۵ دَ غوایانو چه زه ئي اورم ١٥ او شاؤل وویل هغوي له عمالیقانو
راوستلي دِي چه اُمّت به بنه کډورو او په غوایانو تحمّل وکړ
دَپارَ دَ ذبح کولو ستا دَ خداوند الله دَپارَ او باقیه مونږ حرم
۱۶ کړل ١٦ او سموایل شاؤل ته وویل وار وکړه چه زه تاته بیان
کړم هغه چه خداوند ما ته نن شپه کلام کړي دَي او ده
۱۷ ورته وویل ووایه ١٧ او سموایل وویل هرکله چه ته په خپلو
سترګو کښ وړوکي وي سر دَ اسرائیل دَ فرقي نه وي نو خداوند
۱۸ مسحه کړي نه يي څه؟ چه په اسرائیل باندِ بادشاه شي ١٨ او
خداوند په لاري واستولي او وئ ویل درومه او هغه خطاکاران
عمالیقي حرم کړه او له هغو سره جنګ وکړه تر هغه پوري
۱۹ چه دوي نیست شي ١٩ نو تا ولي دَ خداوند آواز وانه وریده
لیکن په لوټ دِ حمله وکړه او هغه چه دَ خداوند په سترګو
۲۰ کښ شَرووه ودِ کړ ٢٠ او شاؤل سموایل ته وویل ما دَ خداوند
آواز آوریدلي دَي او په هغه لاري چه خداوند زه واستولم
تللي يم او اُجاج بادشاه دَ عمالیقیانو مِ راوستلي دَي او عمالیقي
۲۱ مِ بیخي حرم کړي دِي ٢١ لیکن هغه اُمّت له لوټه واخستلي کډَي
غوا خاص څیزونه دَ حرم دَ ذبح کولو دَپارَ ستا دَ خداوند
۲۲ الله په جلجال کښ ٢٢ او سموایل وویل چه دَ خداوند خوشحالي
په سیزونکو او په ذبحو کښ داسي ده څه؟ لکه دَ خداوند په آواز
آوریدلو کښ؟ ګوره اوریدل له ذبحو نه بنه دِي او نغوتل
۲۳ دَ مږدنو له وازدونه بهتر دِي ٢٣ څکه چه باغيتوب لکه دَ
خطا دَ فال آخولو دَي او بدِي لکه دَ بت پرستئ ده او دَ ترافیم

په دي سبب چه تا دَ خداوند کلام رد کړي دَي خداوند ته
٢٤ له بادشاهئِ نه رد کړي يي ٢٤ او شاؤل سموايل ته وويل
ما خطا کړي دَه ځکه چه زه دَ خداوند له کلامَ او ستا له
خبري نه پوري تللي يم ځکه چه زه له اُمّت نه وويريدم او دَ
٢٥ هغه آواز مِ واوريده ٢٥ او اوس ځما خطا معاف کړه او ما
٢٦ سره پستنه راشه چه خداوند ته سجده وکړم ٢٦ او سموايل شاؤل
ته وويل چه له تا سره پستنه نه ګرزم ځکه چه تا دَ خداوند
کلام رد کړي دَي او خداوند ته رد کړي يي دَ اسرائيل له
٢٧ بادشاهي نه ٢٧ او چه سموايل وګرزيده چه لاړ شي نو دَ هغه
٢٨ دَ ځادر لمن يي ونيوه او ځيري شه ٢٨ او سموايل ورته وويل
خداوند نن ورځ له تا نه بادشاهي دَ اسرائيل وشلوله او ستا
٢٩ ګاونډي ته يي ورکړه چه له تانه ښه دَي ٢٩ او جلالِ دَ اسرائيل
هم دروغ نه کوي او نه پښيمانَ کيږي ځکه چه دَي سړي نه دَي
٣٠ چه پښيمانَ شي ٣٠ نو ده وويل چه ما خطا کړي دَه اوس دَ اُمّت
دَ سپين ږيريو او دَ اسرائيل دَ وړاندِ مِ عزّت وکړه او ځما سره
٣١ را وګرزه چه خداوند ستا الله ته سجده وکړم ٣١ او سموايل په
شاؤل پسي وګرزيده او شاؤل خداوند ته سجده وکړه
٣٢ ٣٢ او سموايل وويل را نژدي کړه اُجاج بادشاه دَ عماليقيانو
او اُجاج په نازکئِ سره ورغي او اُجاج وويل په يقين سره تريخوالي
٣٣ دَ مرګ لري شه ٣٣ او سموايل وويل لکه چه ستا توري ښځي بوري
کړي دِي هم هسي دِ دَ ښځو په مينځ کښ ستا مور بوره کړي
شي
٣٤ ٣٤ او سموايل اُجاج په جلجال کښ دَ خداوند دَ وړاندِ
٣٥ ټوټي ټوټي کړ ٣٥ او سموايل رامه ته لاړ او شاؤل خپل کور ته
٣٦ جبعي ته دَ شاؤل وخوت ٣٦ او سموايل زياتَ دَ شاؤل ليدنه

و نه کړه دَده دَ مرګ تر ورځې پورې لیکن سموایل دَ شاؤل دپارَ وِیر
کاوه او خداوند پښیمان شه چه شاؤل ئې په اسرائیل بانذِ بادشاه کړ*

# شپاړسم باب

۱ آ او خداوند سموایل ته وویل تر څو پورې به په شاؤل وِیر کوې
او ما له بادشاهۍ کولو نه په اسرائیل بانذِ رد کړي دَي خپل ښکر
له تیلو نه ډک کړه او درومه زه دِ یسّي بیت‌اللحمي وته استوم
۲ ځکه چه ما دَ هغه په ځامنو کښ ځان له یو بادشاه ولید ۲ او
سموایل وویل څرنګ لاړ شم که شاؤل واورِي نو وبه مِ وژني او
خداوند ورته وویل یوه سخونډره په لاس کښ واخله او ووایه
۳ چه خداوند له دَ ذبح کولو دپارَ راغلي یم ۳ او یسّي ذبحي ته راوبوله
او زه به دِ پوه کړم چه ته به څه کوې او ته به ما له هغه مسح
۴ کړې چه زه دَر ته ووایم ۴ او سموایل هغه وکړه چه خداوند ور ته
کلام وکړ او بیت‌لحم ته راغي او سپین ږیرې دَ ښهر دَده دَ استقبال
۵ دپارَ په لړزیدلو سره راغلل او ورته ئې وویل چه په سلامتیا سره راغلي ئې ۵ او ده ورته وویل
چه په سلامتیا سره دَ خداوند دَ ذبحي کولو دپارَ راغلي یم خپل ځانونه پاک کړئ
او تاسي ذبحي له راشئ او یسّي او دَده ځامن ئې پاک کړل او
۶ هغوي ئې دَ ذبحي دپارَ راوبلل ۶ او داسي وشوه چه دَدوي په
راتلو کښ چه الیاب ئې ولید او وئې ویل چه دَ خداوند دَ وړاندِ
۷ دَده مسیح دَي ۷ او خداوند سموایل ته وویل دَ هغه څهرې ته
مه ګوره او نه دَده لوړ قد ته ځکه چه ما رد کړي دَي ولي چه
خداوند دَ سړي په شان لیدل نه کوي سړي ظاهر صورت ته
۸ ګوري لیکن خداوند زړه ته ګوري ۸ نو یسّي ابیناداب راو باله
او دَ سموایل په مخ کښ ئې تیر که او وئې ویل چه دا هم خداوند
۹ غوره نه کړ ۹ او یسّي شمّاه تیر کړ او وئې ویل چه دا هم خداوند

١٠ غوره نه کړ ١٠ او يسّي اوه ځامن خپل دَ سموايل په مخ کښ تير
١١ کړل نو سموايل ووېل چه دوي خداوند غوره نه کړل ١١ او سموايل
يسّي ته ووېل چه ځوانان دِ تمام شول ؟ او ده ووېل لا تر اوسه
هغه کشر پاتې دَي او گوره چه په رمو سپنکي توب کوي او سموايل
يسّي ته ووېل چه واستوه او را ئې وله ځکه چه مونږ کسيناستلي
١٢ نه شو تر هغه چه دې دلې را نه شي ١٢ او وا ئې ستاوه او دننه
ئې راوست او هغه سور وه او ښائست دَ سترگو او په ليدلو کښ
ښه وه او خداوند ووېل پورته شه مسح ئې کړه ځکه چه دا هغه
١٣ دَي ١٣ نو سموايل هغه ښکر دَ تيلو واخست او مسح ئې کړ دَده
دَ ورونړو په منځ کښ او دَ خداوند روح له هغي ورځي نه وړاندِ
په داؤد نازل شه او سموايل پورته شه او راماه ته لاړ شه
١٤ ١٤ او دَ خداوند روح له شاؤل نه لرې شه او روح دَ شر
١٥ دَ خداوند له طرفَ دَي هيبت زده کړ ١٥ او دَ شاؤل نوکرانو ورته
١٦ ووېل گوره له الله نه دِ روح دَ شر هيبت زده کوي ١٦ نو څمونږ
خاوند دِ ووايي خپلو غلامانو ته چه ستا دَ وړاندِ دِي چه يو سړي
ولټوي هوښيار په غږوني دَ ستار کښ او داسي به وشي هرکله
چه له الله نه روح دَ شر په تا باندِ راځي نو په لاس سره به
١٧ ئې وغږوي او تا ته به ښه شي ١٧ او شاؤل خپلو نوکرانو ته ووېل
چه څما دَپارَ وگورئ يو سړيَ چه په غږولو سره ښه وي او تاسو
١٨ ئې ما ته راولئ ١٨ او يو له ځوانانو نه ځواب ورکړ او و ئې ويل
چه گوره ما څوي دَ يسّي بيت اللحمي وليد هوښيار په غږوني کښ
او جبار دَ قوت او جنگيالي سړي او فهم دار دَ ويلو او ښائسته
١٩ سړي او خداوند ورسره دي ١٩ او شاؤل استاځي يسّي ته واستول
او و ئې ويل داؤد خپل څوي چه له رمي سره دَي را ئې ستوه
٢٠ ٢٠ او يسّي يو خر واخست ډوډئ او ژَي ئې دَ شرابو او يو سيرلي

٢١ او دَ خپل ځوي داؤد په لاس ئي شاؤل ته واستول ٢١ او داؤد شاؤل
ته راغي او دَده په مخ کښي ودريده او هغه ډير پرِ محبّت کاوه او دَ
٢٢ وسلي پورته کونکي ئي شه ٢٢ او شاؤل يسي ته واستاوه و ئي ويل
چه داؤد دِ ځما په مخ کښي ودريږي ځکه چه ځما په سترګو کښي ئي فضل
٢٣ وموند ٢٣ او داسي وشوه چه له الله نه به هغه روح پر شاؤل باندِ
راته نو داؤد به ستار واخست او په لاس ئي وغږاوه نو شاؤل به تازه
کيده او ورته به خير شه او هغه بد روح به ورنه لري کيده ✣

# اوه لسم باب

١ ١ او فلستيانو خپلي لښکري دَ جنګ دَپارَ راجمع کړلي او په شوکوه باندِ چه دَ
يهودا دَي جمع شول او دَ شوکوه او دَ عزيقاه په مينځ کښي په افسدميم کښي
٢ ئي ډيره وکړه ٢ او شاؤل او سړي دَ اسرائيل راجمع شول او دَ ايلاه په خوړ
کښي ډيره شول او دَ جنګ دَپارَ ئي دَ فلستيانو په مقابل صفونه
٣ وتړل ٣ او فلستيان دَ غره په دي طرف ولاړ وُو او اسرائيل دَ غره په
٤ هغه طرف ولاړ وُو او دَ هغو په مينځ کښي کنده وه ٤ او يو سړي پهلوان
دَ فلستيانو له ډيري نه ووت جليات نُوم ئي وه له جات نه او اوږدوالي
٥ ئي شپږ هاتي او يوه لويشت وه ٥ او خول دَ زيړو ئي په سر وه او
لباس ئي دَ زغري قبا آغوستي وه او وزن دَ زغري ئي پنځه زره
٦ شاقله دَ زيړو وه ٦ او دَ زيړو موزي ئي په پښو وي او دَده دَ
٧ اوږي په مينځ کښي دَ زيړو برچه وه ٧ او دَده دَ نيزي تير دَ جولا
دَپلي تيرپه شان وه او دَده دَ نيزي لښه شپږ سوه شاقله دَ اوسپني
٨ وه او پورته کونکي دَده دَ ګنګل دَده په مخ کښي ته ٨ او دي ودريده او
دَ اسرائيل صفو ته ئي ناره وکړه ورته ئي وويل چه تاسي ولي راوتلي
ئي دَ جنګ دَ صف تړلو دَپارَ زه فلستي نه يم څه؟ او تاسو دَ
شاؤل نوکران تاسو خپلو ځانونه ته يو سړي غوره کړئ او ما ته

۹ دِ راکوز شِي ۹ که هغه توان لرِي چه را سره وجنګیږِي او و مِ
وژنِي نو مونږ به ستاسو نوکران شو او که زه و توانیږم ور باندِ
او و ئِي وژنم نو تاسو ځمونږ نوکران شئِ او ځمونږ نوکرِي به کوئِ
۱۰ ۱۰ او هغه فلستِي وويل زه نن ورځ دَ اسرائیل په صفونو پورِي
۱۱ ټوقِي کوم یو سړِي راکړئِ چه مونږ سره وجنګیږو ۱۱ او چه شاؤل
او ټول اسرائیل دَ هغه خبرِي واوریدلِي نو هک پک شول او
ډیر ویریدل
۱۲ ۱۲ او داؤد دَ هغه افراطِي سړِي ځوي وه له بیت‌اللحم یهودا
او نوم ئِي یسِي وه او اته ځامن ئِي وُو هغه سړِيَ دَ شاؤل
په ورځو کښ سپین ږیرِي او دَ سړو په مینځ کښ په عمر رسیدلِي
۱۳ وه ۱۳ او درِي لوِي ځامن دَ یسِّي لاړ شوِي او په شاؤل پسِي
جنګ ته تللِي وُو او نومونه دَده دَ درِیو ځامنو چه جنګ ته تلل
۱۴ الیاب مشراودویم ئِي ابي ناداب او دریم ئِي شمّاه ۱۴ او داؤد کشر وه
۱۵ او هغه درِي لوِي شاؤل پسِي تلل ۱۵ او داؤد به له شاؤل نه ځُنه
۱۶ راتُه دَ خپل پلار دَ رمِي دَ څرولو دَپارَ په بیت‌اللحم کښ ۱۶ او
هغه فلستِي به سحر او ماښام نژدِي کیده او ترڅلویښتو ورځو
ئِي خپل ځان ودراوه
۱۷ ۱۷ او یسِّي خپل ځوي داؤد ته وويل واخله که نه خپل
و رونړو ته یوه ایفاه دَدِي نینو او دا لَس ډوډِئ او ډیرِي ته
۱۸ خپلو ورونړو ته په ترپ ورورِه ۱۸ او دا لَس ټکرِي دَ پنیر دَ دوِي
دَ زرو دَ سردار دَپارَ ور وړه او دَ خپلو ورونړو دَ سلامتیا
۱۹ تفحص وکړِه او له هغو نه بیعانه واخله ۱۹ او شاؤل او هغوِي
او ټول سړِي دَ اسرائیل دَ ایلاه په خوړ کښ وُو فلستیانو سره
۲۰ جنګ کونکِي ۲۰ او داؤد صبا وختِي پورته شه او یو ساتونکِي ته ئِي
رمّه پرېښوده او وائِي خستل او لاړ لکه چه یسِّي ورته فرمایلِي

وو او هغه دَ ګاډو ځاي ته راغي او لښکر صفونو ته ووت او
دَ جنګ ډِپارَ ئي ناره وکړه ۲۱ او اسرائیلو او فلستیانو صفونه ۲۱
وتړل صفونه مخامخ دَ صفونو ۲۲ او داؤد خپل اسباب دَ اسباب ۲۲
دَ ساتونکي په لاس کښ پرېښود او صفونو ته ئي دو کړ او راغي
او له خپلو ورونړو نه ئي دَ سلامتیا سوال وکړ ۲۳ او چه ده ۲۳
ورسره خبري کولي نو ګوره چه هغه پهلوان سړي فلستي دَ جات
چه نوم ئي جلیات وه دَ فلستیانو له صفونو نه راوخوت او دَدي
خبرو په شان ئي خبره وکړه او داؤد واوریدلي ۲۴ او ټولو سړو ۲۴
دَ اسرائیل چه هغه سړي ولید نو دَده له مخې نه وتښتیدل او
ډیر ووېریدل ۲۵ او سړو دَ اسرائیل وویل تاسي دا سړي لیدلي دَي ۲۵
هغه چه راختلي دَي ځکه چه دَ اسرائیل دَ پېغور دَپارَ راختلي
دَي او داسي به وشي هغه څوک چه دا سړَي ووژني بادشاه به
ئي په ډیر دولت سره دولتمند کړي او خپله لور به وله ورکړي
او دَ هغه دَ پلار کور به په اسرائیل کښ آزاد کړي ۲۶ او داؤد ۲۶
خبره وکړه هغه سړو ته چه ورته ولاړ وو و ئي ویل څه به
وکړي شي له هغه سړي سره چه دغه فلستي ووژني؟ او دغه
پېغور له اسرائیل نه لرې کړي ولي چه دا نامختون فلستي څوک دَي
چه دَ ژوندي الله صفونو ته پېغور کوي ۲۷ او اُمت ورته ددي ۲۷
خبرو په شان وکړه و ئي ویل داسي به وکړي شي له هغه سړي
سره چه و ئي وژني ۲۸ او الیاب دَده مشر ورور واوریدل چه ده له ۲۸
سړو سره خبره وکړه او په داؤد باندِ دَ الیاب خفګي توده شوه
او و ئي ویل څه دَپارَ کوز راغلي یي او چا ته دِ هغه لږ څه
ګډي په بیابان کښ پرېښودلي دِي زه ستا په مغروريِ او ستا
دَ زړه په شرارت پوهیږم چه دَ جنګ دَ لیدلو دَپارَ کوز راغلي
يي ۲۹ و داؤد وویل اوس ماڅه کړي دِي څه سبب نه دَي ځنې ۲۹

٣٠ ٣٠ او له ده نه دَ بل طرف په لوري وګرزيده او دَ دي خبرو په
شان ئې وويل او خلقو دَ وړاندِ نئ خبري په شان ورته خبره
٣١ وکړه ٣١ او چه دا خبري واوريدلي شولي چه داؤد وويلي نو دوئ
٣٢ دَ شاؤل په مخ کښ ځرګندي کړلي او دَي ئې راوباله ٣٢ او داؤد
شاؤل ته وويل دَ هيچا سړي زړه دِ دَ هغه په سبب پري نه وزي
٣٣ ستا غلام به لاړ شي او دَ دي فلستي سره به جنګ وکړي ٣٣ او
شاؤل داؤد ته وويل چه ته نه توانيږي چه لاړ شي او له دي
فلستي سره جنګ وکړي ځکه چه ته ځوان يي او دَي دَ خپلي
٣٤ ځوانئِ نه جنګيالي سړه دَي ٣٤ او داؤد شاؤل ته وويل ستا
غلام دَ خپل پلار دَ رمي ځرونکي وه او چه يو زمري راغي يا
٣٥ يو يږ او وري ئې له کنډک نه ونيوه ٣٥ او زه ورپسي ووتلم
او وه مِ واهـــــــه او دَه له خولي نه مِ خلاص که
او چه دي په ما باندِ پورته شه نو دَي مِ له ږيري نه ونيوه او
٣٦ دي مِ وواهه او مړ مِ کړ ٣٦ ستا غلام هم دغه زمريَ هم
دغه يږ ووهل او دا نامختون فلستي به له دغو نه لکه دَ يو وي
٣٧ ځکه چه دَ ژوندي الله په صفونو ئې پيغور وکړ ٣٧ او داؤد وويل
هغه خداوند چه زه ئې دَ زمري له لاس او دَ يږ له لاسه خلاص
کړلم هغه به مِ دَ دي فلستي له لاس هم خلاص کړي او شاؤل
٣٨ داؤد ته وويل چه لاړ شه خداوند دِ تا سره وي ٣٨ او
شاؤل خپلي جامي داؤد ته ور واغوستولي او دَ زيرو خول ئې ور په
٣٩ سر که او زغره ئې ور واغوستوله ٣٩ او داؤد خپله توره په خپل
پوښاک وتړله او له تللو نه ئې درنګ وکړ ځکه چه آزمائښت ئې
کړي نه وه او داؤد شاؤل ته وويل چه زه نه توانيږم چه له
دغو سره ورشم ځکه چه ازمايلي مِ نه دِي او داؤد هغه له
٤٠ ځانَ لري کړل ٤٠ او ده خپل لوړه په لاس کښ واخست او له

رود نه ني ښځه ښويه کاڼړي ځان ته غوره کړل او دوي ئي دَ
شپنکيتوب په ځولۍ کښ چه ورځخه وه کيښودل او په لاخوره کښ
او مچوغنه دَده په لاس کښ وه او هغه فلستي ته ورنژدي شه
۴۱ او هغه فلستي په تللو ئه او داؤد ته نژدي شه او هغه سړي ۴۱
دَ ډهال پورته کونکي دَده په مخ کښ وه ۴۲ اوچه فلستي وکتل ۴۲
او داؤد ئيُ ولید نو سپک ئي وګانړه ځکه چه ځوان وه او سُور وه
او په لیدو کښ ښائسته ۴۳ او فلستي داؤد ته وویل سپَي یم چه ۴۳
ته ما ته په کوتک سره راځي او فلستي داؤد ته په خپلو الهانو
سره لعنت وکړ ۴۴ او هغه فلستي داؤد ته وویل ما ته راشه او ۴۴
زه به ستا غوښه دَ آسمان مرغانو ته او دَ پټي حیوانانو ته ورکړم
۴۵ او داؤد هغه فلستي ته وویل چه ته ما ته په تُوره او په نیزه ۴۵
او په برچي سره راځي او زه تا ته دَ یهوه دَ لښکرو دَ اسرائیل دَ
صفونو دَ الله په نُوم سره درځم چه تا ورته پیغور وکړ ۴۶ هم په دې ۴۶
ورځ به دِ خداوند ځما په لاس کښ وسپاري او زه به دي ووهم
او ستا سر به له تانه لري کړم او زه به دَ فلستیانو دَ لښکر مړي
هم په دې ورځ دَ آسمان مرغانو ته او دَ زمکي حیوانانو ته ورکړم
تا چه ټوله زمکه وپوهیږي چه دَ اسرائیل الله شته دي ۴۷ او چه ۴۷
دا ټول جماعت وپوهیږي چه خداوند په تُوره او په نیزه سره
نه خلاصوي ځکه چه جنګ دَ خداوند دَي او هغه به تاسو ځموږ
په لاسونو کښ راکړي ۴۸ او داسي وشوه چه فلستي پورته شه ۴۸
او ئُه او دَ داؤد دَ ملیا کیدلو دَپارَ نژدي شه نو داؤد بيړه وکړه
او دَ صفونو په خوا دَ فلستي دَ ملیا کیدو دَپارَ وزغلیده ۴۹ او ۴۹
داؤد خپل لاس خپلي ځولۍ ته اوږد کړ او ورنه ئي یو کاڼړي واخست
او وئي ویشت او هغه فلستي ئي په تندي وواهه او هغه
کاڼړي دَده په تندي کښ ښخ شه او دَي پرمخ زمکي ته پریوت

۵۰ ۵۰ نو داؤد په فلستي غالب شه په مچوغنه او په کاڼي سره
او هغه فلستي ئي وواهه او مړ ئي کړ او تُوره دَ داؤد په لاس
۵۱ کښ نه وه ۵۱ او داؤد وزغلیده او په هغه فلستي ودریده او
دَ هغه توره ئي واخستله او له تیکي ئي وویستله او مړ ئي کړ
او په هغي ئي سر پریکړ او چه فلستیانو ولیدل چه دَ دوي جبار
۵۲ مړ شه نو وتښتیدل ۵۲ او دَ اسرائیل او دَ یهودا خلق پورته
شول او هاها ئي وکړل او په فلستیانو پسي وزغلیدل ترهغه
چه جت ته راشي او دَ عقرون دروازي ته او فلستیان ژوبل
شوي دَ شعریم په لاري کښ پریوتل او ترجات پوري او تر
۵۳ عقرون پوري ۵۳ او بني‌اسرائیل په فلستیانو پسي له ښکار کولو
۵۴ نه پسته راغلل او دَ هغو ډیري ئي لوټ کړلي ۵۴ او داؤد سر دَ
فلستي واخست او یروشلم ته ئي راوړ او دَ هغه وسلي ئي په خپلي
خیمه کښ کیښودلي

۵۵ ۵۵ او چه شاؤل داؤد ولید چه دَ فلستي ملیا کیدلو ته
ورځي نو ابنیر سردار دَ فوځ ته ئي وویل داځوان دَ چا ځوي دي
اي ابنیره او ابنیر وویل اي بادشاه ستا ځان ژوندي دي زه
۵۶ نه پوهیږم ۵۶ او بادشاه وویل ته سوال وکړه چه دغه ځوان
۵۷ دَ چا ځوي دي ۵۷ او چه داؤد دَ فلستي له وهلو نه پسته راغي
نو ابنیر دَ شاؤل مخ ته راوست او سر دَ هغه فلستي ئي
۵۸ په لاس کښ وه ۵۸ او شاؤل ورته وویل اي ځوانه ته دَ چا
ځوي یي نو داؤد وویل ستا دَ غلام یسّي بیت‌اللحمي ځوي یم *

## اتلسم باب

۱ ۱ او داسي وشوه هرکله چه ده سره شاؤل خبري کول ختم کړل
نو ځان دَ یونتن دَ داؤد له ځان سره ونښت او یونتن له هغه

سره دَ خپل ځان په شان محبّت کاوه ۲ او شاؤل په هغه ورځ ۲
واخست او پرې ئې نهٔښود چه دې دَ خپل پلار کور ته وجاروزِي
۳ او يونتن او داؤد يوه وعده وکړه ځکه چه ده دَ خپل ځان په ۳
شان مينه پرِکوله ۴ او يونتن له خپل ځانَ هغه قباچه وربانډِ ۴
وه وويستله او خپلي جامې او خپله توُره او خپله لِنده او له خپله
کمربنده سره ئې داؤد ته ورکړل ۵ او داؤد به هر چرته چه شاؤل ۵
استاوه وبه ووت او په فهم سره به ئې کار کاوه او شاؤل دَ جنګ
په سړيو بانډِ ودراوه او دَ ټول اُمّت په سترګو کښ اوهم دَ شاؤل
دَ نوکرانو په سترګو کښ ښه وه٭
۶ او دَدوي په راتلو کښ داسې وشول چه داؤد دَ هغه ۶
فلستِي له وژلو نه را وجاروت نو ښځې له ټولو ښهرونو دَ اسرائيل
نه په سندرو ويلو او په ګډيدلو سره دَ شاؤل بادشاه دَ استقبال
دَپارَ راووتلې په تنبلونو او په خوشحالئِ او په درياڵونو سره ۷ او ۷
هغو ښځو په غزلولو سره يو تر بله ځواب کاوه او وئې ويل
چه شاؤل په زرګونو ووهل او داؤد په لاکونو ووهل٭
۸ او شاؤل ډير په غُصّه شه او دَ هغه په سترګو کښ دا خبره ۸
بده ښکاره شوه او وئې ويل چه دوي داؤد ته لاکونو ورکړي
دِي او ما ته ئې زرګونه راکړي دِي او اوس ده لره تشه بادشاهي
باقِي دَه ۹ او شاؤل له هغه ورځې نه په وراندِ په داؤد سترګې ۹
لرلې

۱۰ او په صبا داسې وشول چه له الله نه روح دَ شر په ۱۰
شاؤل نازل شه او ده دَکور په مينځ کښ ليونتوب وکړ او داؤد
په خپل لاس سره وغږاوه لکه چه ورځ په ورځ او برچه دَ
شاؤل په لاس کښ وه ۱۱ او شاؤل برچه وويشتله وئې ويل ۱۱
چه زه داؤد له ديوالَ سره ژوبل کړم او داؤد دَده له مخې نه

۱۲ دوه واره لرې شه ۱۲ او شاؤل به دَ داؤد له مخې ووېرېده ځکه
۱۳ چه خداوند ورسره وه او له شاؤل جدا شه ۱۳ او شاؤل له
خپله ځانه لرې کړ او ځان لره ئې دَ زرو سردار مقرّر کړ او دې
۱۴ به دَ اُمّت په مخ کښ وت ننه وت ۱۴ او داؤد به په خپلو ټولو لارو
۱۵ کښ زيرکې کوله او خداوند ورسره وه ۱۵ او چه شاؤل وليد چه
دې ډېره زيرکې کوي نو دَ ده له مخې نه ئې خوف وکړ ۱۶ او ټول اسرائيل
۱۶ او يهودا له داؤد سره محبّت وکړ ځکه چه دې دَ دوي دَ وړاندې
وت ننه وت

۱۷ ۱۷ او شاؤل داؤد ته ووئيل گوره ځما مشره لور ميراب
دَه هغه به تا له په نکاح درکړم تش ته ځما دَ پاره دَ قوّت ځوي
شه او دَ خداوند په جنگونو کښ جنگيږه او شاؤل ووئيل چه ځما
۱۸ لاس دِ پرې نه وي مگر لاس دَ فلستيانو دِ پرې وي ۱۸ او داؤد شاؤل
ته ووئيل زه څه يم او ځما ژوندون څه دې او ځما دَ پلار خپلخانه
۱۹ په اسرائيل کښ څه ده چه زه دَ بادشاه زوم شم ۱۹ ليکن په هغه
وقت چه ميراب لور دَ شاؤل داؤد ته ورکيدله نو هغه ادرييل
۲۰ محولاتي ته په نکاح ورکړلې شوله ۲۰ او ميکل لور دَ شاؤل په
داؤد مينه وکړه او دوي شاؤل ته ښکاره کړه او هغه خبره
۲۱ دَده په سترگو کښ راسته وه ۲۱ او شاؤل ووئيل زه به ئې ورکړم
او هغه به ورته لومه شي او چه دَ فلستيانو لاس به پرې وي او
شاؤل داؤد ته ووئيل په دويم وار نن ورځ به م ته زوم شي -
۲۲ ۲۲ او شاؤل خپلو نوکرانو ته وفرمائيل داؤد ته په پټه سره خبره
وکړئ ووائئ گوره بادشاه په تا خوشيږي او ټول نوکران ئې په تا
۲۳ مينه کوي او اوس دَ بادشاه زوم شه ۲۳ او دَ شاؤل نوکرانو دَ داؤد
په غوږونو کښ دا خبرې وکړې او داؤد ووئيل چه ستاسو په سترگو
کښ دَ بادشاه زوم کيدل سپک دې او زه خوار سړې او سپک

۲۴ کښېلي شوي يم ۲۴ او دَ شاؤل نوکرانو ورته و ويل دَ دغو خبرو
۲۵ په شان داؤد و ويل ۲۵ او شاؤل و ويل تاسي داؤد ته داسي ووائى
بادشاه هيڅ مَهر نه غواړي لېکن سل څوېښي دَ فلستيانو دَ بادشا
له دُښمنانو نه دَ بدل اخستلو دَپارَ او شاؤل فکر وکړ چه
۲۶ داؤد دَ فلستيانو په لاس کښېباسِي ۲۶ اوچه دَده نوکرانو داؤد
ته دا خبري و ويلي نو دا خبره دَ داؤد په سترګو کښ راسته وه
۲۷ چه دَ بادشاه زوم شِي او ورځي پوره نه وي ۲۷ چه داؤد پورته
شه او لاړ شه هغه او دَده سړِي او په فلستيانو کښ ئي دوه
سوه سړِي و وهل او داؤد ئي څوېښي راوړلي او دوي بادشاه ته
حساب پوره کړ چه دَي دَ بادشاه زوم شِي او شاؤل خپله لُور
۲۸ ميکل په نکاح ورکړه ۲۸ او شاؤل وليدل او و پوهېده چه
خداوند دَ داؤد سره دَي او ميکل دَ شاؤل لُور ورسره مينه
۲۹ کوله ۲۹ او اوس شاؤل دَ داؤد له مخ زياته وېره وکړه او شاؤل
دَ داؤد دُښمن شه په ټولو ورځو کښ
۳۰ ۳۰ نو سرداران دَ فلستيانو ووتل او داسي وشوه چه دَ
هغه دَ وتلو له وقت نه داؤد دَ شاؤل له ټولو نوکرانو نه په
فهم سره کار کاوه او نوم ئي ډېر مشهور شه ٭

# نولسم باب

۱ ۱ او شاؤل يونتن خپل ځوي ته او خپلو ټولو نوکرانو ته و ويل چه
دوي داؤد ووژني لېکن يونتن دَ شاؤل ځوي په داؤد ډېره
۲ خوښي کوله ۲ او يونتن داؤد ته ښکنده کړه وئي ويل چه
شاؤل زما پلار ستا دَ مرګ په فکر کښ دَي او اوس په صبا
کښ خپل ځان وساته: (کهٔ نه) او ته په پټه کښ اوسه او خپل ځان پټ هم
۳ کړه ۳ او زه به ووزم او دَ خپل پلار په څنګ کښ به ودرېږم

په هغه پټي کښې چه هلته ته يې او زه به خپل پلار سره ستا په
۴ باب کښې خبره وکړم او که چرې څه وينم نو به درته وښيم ۴ او
يونتن خپل پلار شاؤل ته دَ داؤد په باب کښې ښه خبره وکړه او
ورته ئې ووئيل بادشاه دِ په خپل بند داؤد خطا و نه کړي ځکه چه
ده ستا خطا کړې نه دَه او ځکه چه عملونه ئې تا ته ډير ښه دِي -
۵ ۵ ولې چه ده په خپل ورغوي کښې خپل ځان کيښود او هغه فلستي
ئې وواهه او خداوند دَ ټول اسرائيل دَپارَ لوي خلاصون وکړ تا وليدل
او خوشحال شوي نو ولې دَ بيګناه په خون خطا کوي چه بې له سببَ داؤد
۶ مړ کوي ۶ او شاؤل دَ يونتن آواز واوريده او شاؤل قسم وخوړ
۷ يهوه حَي دَي چه مړ به نه کړې شي ۷ او يونتن ورته دغه ټولې
خبرې ښکاره کړې او يونتن داؤد شاؤل ته راوست او هغه دَده
په حضور کښې لکه پروني او وړاندې وه
۸ ۸ او بيا جنګ وشه او داؤد ووت او فلستيانو سره وجنګيده
او هغوي ئې په لوي وهني سره ووهل او دَ هغه له مخ نه وتښتيدل
۹ ۹ او په شاؤل باندې يو بد روح له خداوندَ وه او هغه په خپل کور
کښې ناست وُه او خپله برچه ئې په لاس کښې وه او داؤد په خپل لاس
۱۰ سره وغږاوه ۱۰ او شاؤل وغوښت چه داؤد په برچې سره له ديواله
ږوبل کړي ليکن دَ شاؤل له حضوره ښويه ووت او هغه برچه ئې
په ديوال کښې ووهله او داؤد وتښتيد او هغه شپه خلاص شه
۱۱ ۱۱ او شاؤل استاځي دَ داؤد کره واستول چه دَده نګاهباني وکړي او
په صبا کښې ئې مړ کړي او ميکل دَ هغه ښځې ورته ښکاره کړه
و ئې ويل چه که ته نن شپه خپل ځان خلاص نه کړې نو په سحر
۱۲ وقتې کښې به مړ کړې شې ۱۲ نو ميکل داؤد له درېڅې نه کوز کړ او
۱۳ هغه لاړ ښه او وتښتيد او خلاص شه ۱۳ او ميکل هغه ترافيم
واخستل او په کټ ئې کيښودل او تکيه دَ وزو دَ هغه په سر کښې

کیښودله او په ځاې سره ئې پټ کړ ۱۴ او چه شاؤل استاځي واستول ۱۴
دَ داؤد دَ نیولو دَپاره نو دې ووېل چه هغه ناجوړ دَې ۱۵ او شاؤل ۱۵
هغه استاځي دَ داؤد دَ لیدلو دَپاره دروَاستول وېل ئې ماته ئې په کټ
کښ راوخېژوئ چه ئې مړ کړم ۱۶ او چه هغه استاځي وراغلل نو ۱۶
ګوره هغه ترافیم په کټ کښ وُو او تکیه دَ بزو دَ هغه سر ته
۱۷ او شاؤل میکل ته ووېل ولې دِ داسې ټګلې یم او خما دښمن ۱۷
دِ واستاوه چه خلاص شه او میکل شاؤل ته ووېل هغه ماته
ووېل پرېږده ولې به دِ مړه کړم
۱۸ او داؤد وتښتید او خلاص شه او سموایل ته راماه ته ۱۸
ورغې او هغه ټول څه چه شاؤل ورسره وکړل ورته ئې څرګند
کړه او هغه او سموایل لاړل او په نایوت کښ واوسیدل ۱۹ او ۱۹
شاؤل ته وښیلې شول په دې ویلو چه ګوره داؤد دَ نایوت په راماه
کښ دَې ۲۰ او شاؤل استاځي واستول چه داؤد ونیسي او چه هغوي ۲۰
دَ نبیانو جماعت نبوّت کونکي ولید او سموایل دَدوي په سر ولاړ نو
دَ شاؤل په استاځو باندِ دَ الله روح راغي او هغوي هم نبوّت کاوه
۲۱ او چه شاؤل ته وښیلې شول نور استاځي ئې واستول او دوي ۲۱
هم نبوّت کاوه او شاؤل بیا وکړه او استاځي ئې دریم وار واستول
او دوي هم نبوّت کاوه ۲۲ او هغه هم راماه ته لاړ شه او هغه ۲۲
لوي کوهي ته چه په څیکو کښ دَې راغي او سوال ئې وکړ وئې
وېل سموایل او داؤد چرته دِي او یو ووېل ګوره په نایوت په
راماه کښ دِي ۲۳ او هلته نایوت ته په راماه کښ راغي او دَ ۲۳
الله روح هم پرِ باندِ وه او په تللو تهٔ او نبوّت ئې کاوه تر هغه
چه نایوت ته په راماه کښ راغي ۲۴ او هغه هم خپلې جامې لرې ۲۴
کړې او دَ سموایل په مخ کښ ئې نبوّت کاوه او هغه ټوله ورځ او
ټوله شپه بربنډ پروت وه په دې خلق وایې چه شاؤل هم په

نبیانو کښې دي ❖

# شلم باب

۱ آ او داؤد له نایوتِ رامَاه نه وتښتید او راغي او دَ یونتن په مخ
کښې ئې وویل چه ما څه کړي دي څه بدي مې ده څه خطا مې دَه
۲ ستا دَ پلار په مخ کښې چه دَي زما ځان لټوي ۲ او ده ورته
وویل داسې دِ نه وِي ته به مړ نه شې گوره زما پلار هیڅ لوی کار
یا وړوکي کار نه کوِي چه ما په هغې خبر نه کړي او ولې به زما
۳ پلار دا خبره له مانه پټه کړي هسې نه دِي ۳ او داؤد زیات قسم
وکړ او وئې ویل ستا پلار په پوره سره پوهیږي چه ما ستا په
سترگو کښې مهرباني موندلې دَه او دا وایِي چه یونتن دِ ونه پوهیږي
هسې نه چه غمجن شي مگر په ریښتیا سره بیهوه حيّ دَي او ستا
ځان ژوندَي دَي ولې زما په مینځ کښې او دَ مرگ په مینځ کښې
۴ تش یو قدم دَي ۴ او یونتن داؤد ته وویل څه چه ستا ځان
۵ وایِي نو زه به ئې ستا دَپارَ وکړم ۵ او داؤد یونتن ته وویل گوره
صبا نوې میاشت دَه او زه به بادشاه سره دَ خوراک دَپارَ په
کښېناستلو سره کښېنم لیکن وا مې سئوه چه په پټې کښې دَ دریمې
۶ تر دریمه ماښامه پورې ځان پټ کړم ۶ که ستا پلار په بازخواست
سره بازخواست وکړِي نو ته ووایه چه داؤد له ما ته سوال وکړ
چه بیت‌اللحم خپل ښهر ته وزغلي ځکه چه دَده دَ ټولو خیلخانو
۷ دَپارَ هلته سالانه ذبیحه ده ۷ که دَي داسې وایِي خیر نو ستا بنده
له به سلامتیا وِي او که دَ هغه غضب گرم شي نو ته پوه شه
۸ چه بدي ورته مقرّره شوي دَه ۸ نو ته له خپله بنده سره مهرباني
وکړه ځکه چه تا خپل بنده دَ خداوند په عهد کښې له ځان سره
ننه باسلي دَي او که بدي په ما کښې دِي نو ته مې په خپله مړ
۹ کړه او خپل پلار ته مې ولې ودروي ۹ او یونتن وویل داسې دِ

نه وِي ځکه چه که چرې زه پوهیدلي چه شرارت ځما له پلار نه
مقرر شوي دَي چه په تا راشي نو تا ته به مِ ځرګنده کړي نه وه څه؟
۱۰ نو داؤد یونتن ته وویل ځوک به ما ته ښکاره کړي چه ګندِ ستا ۱۰
پلار به تا ته په سختئِ سره ځواب درکړي ۱۱ او یونتن داؤد ته وویل ۱۱
راشه چه مونږ دواړه پټي ته ووزو نو دوي دواړه پټي ته ووتل
۱۲ او یونتن داؤد ته وویل اي خداوند الله دَ اسرائیلَ هغه ۱۲
وقت چه ما دَ خپل پلار ازمایښت کاوه لکه به دي وقت په صبا
یا په دریمه ورځ او ګوره که داؤد ته خیروِي او زه به ئې درنه استوُم
او در ښکاره به ئې نه کړم ۱۳ نو خداوند دِ له یونتن سره هسي ۱۳
وکړي او له دي نه زیات که چرې ځما پلار په تا باندِ شرارت کول
خوښ کړي نو زه به ئې درته ځرګند کړم او وا به دِ ستوم چه په
سلامتیا سره لاړ شي او خداوند دِ له تا سره وِي لکه چه ځما له
پلار سره وه ۱۴ او نه اوس چه زه ژوندي یم نو ته به له ما سره دَ ۱۴
خداوند په شان مهربانِي وکړي چه زه مړ نه شم ۱۵ او نه به خپله ۱۵
مهربانِي ځما له کوره تر ابدَ پوري نه پریکوي او تر ځو چه خداوند
دَ داؤد دښمنان هر یو دَ زمکي له دي مخ نه پریکړي نه دِي ۱۶ او یونتن ۱۶
دَ داؤد له کور سره وعده وکړه وئې ویل چه خداوند دِ دَ داؤد دَ
دښمن له لاسَ دي وغواړي ۱۷ او یونتن بیا له داؤد سره قسم وکړ ۱۷
په هغه میني سره چه ور سره ئې وه ځکه چه ده په هغه هسي
مینه وکړه لکه په خپل ځان ۱۸ او یونتن ورته وویل صبا به نوي ۱۸
میاشت وِي او ستا به بازخواست وکړي شي ځکه چه ستا کرسئِ
به ستا بازخواست وکړي ۱۹ او په دري ورځي به زر راکوز شي او ۱۹
هغه مکان ته به راشي چه هلته دِ ځان پټ کړي وه دَ هغي کار
په ورځ او نه به دَ آزل دَ کاڼړي په څنګ کښې کښیني ۲۰ او زه به ۲۰
دري غشي دَ ده په څنګ کښې درو ولم لکه چه زه یوه نښه ولم

۲۱ ۲۱ او گوره زه به هغه هلک واستوم و به وایم درومه هغه
غشي ومومه نوکه زه هلک ته ووایم چه گوره غشي ستا به دي
پلو دِي وا ئي خله راشه نو تا له سلامتیا ده او هیڅ نشته یهوه
۲۲ حي دَي ۲۲ لیکن که زه هلک ته داسي ووایم چه گوره غشي له
۲۳ تا نه هغه پلو دِي نو درومه ځکه چه خداوند استولي بي ۲۳ او
هغه خبره چه ما او تا پرِ خبره کړي دَه گوره خداوند ځما په مینځ او
ستا به مینځ کښ ترابدَ پوري دَي
۲۴ ۲۴ نو داؤد خپل ځان په پټي کښ پټ کړ او چه نوي میاشت
۲۵ راغله نو بادشاه په ډوډيِ خوړلو کښیناست ۲۵ او بادشاه په کرسيِ
کښیناست لکه چه هر وار به په کرسيِ باندِ دیوال څنګه وه او
یونتن ودریده او ابنیر دَ شاؤل به خوا کښ کښیناست اودَ داؤد
۲۶ ځاي خالي وه ۲۶ او شاؤل په هغه ورځ هیڅ و نه ویل ځکه چه
گُندِ څه ورپیښ شوي دِي پاک به نه وِي ضرور به هغه پاک نه وِي
۲۷ ۲۷ او داسي وشوه پس دَ نوي میاشتي په صبا کښ چه دویمه وه
نو دَ داؤد ځاي خالي وه او شاؤل یونتن خپل ځوي ته وویل ولي
۲۸ دَ یِسَّي ځوي په ډوډيِ باندِ نه راځي نه پرون نه نن ورځ ۲۸ او یونتن
شاؤل ته ځواب ورکړ چه داؤد له مانه سوال وکړ چه بیت اللحم
۲۹ ته لاړ شِي ۲۹ او وئي ویل چه پري مِ ږده ځکه چه ځمونږ دَ خیلخاني
په ښهر کښ ذبیحه دَه او ځما ورور په هغي ماته و فرمایل او که اوس
ما ستا په سترگو کښ فضل موندلي دَي پري مِ ږده چه خپل ورونړه
۳۰ وینم په دي سبب دَي دَ بادشاه خوانچي ته نه راځِي ۳۰ نو دَ شاؤل
غضب په یونتن گرم شه او ورته ئي وویل اي دَ کږي اودَ سرکښي
ځویه زه نه پوهیږم څه؟ چه تا دَ یسّي ځوي دَ خپل شرم دَپارَ او
۳۱ دَ خپلي مور دَ ستر دَ شرم دَپارَ غوره کړ ۳۱ ځکه چه ترڅو پوري
چه دَ یسّي ځوي په خاوري باندِ ژوندي وِي نه به ته او نه به ستا

بادشاهت نينگ شي او اوس واستوه او ما ته ئي راوله ځکه چه
هغه دَ مرګ څوي دَی ٣٢ او يونتن خپل پلار شاول ته ځواب ورکړ ٣٢
او ورته ئي ووېل ولي به مړ کړي شي څه ئي کړي دي ٣٣ او شاؤل ٣٣
خپله برچه په ده پسي ورو ويشتله چه ولئ وهي او يونتن وپوهيده
چه دَده له پلار مقرّره شوي وَه چه داؤد مړ کړي ٣٤ نو يونتن په ٣٤
سختي غصّي سره له خواڅي نه پورته شه او دَ مياشتي په دويمي ورځي
ئي ډوډئ و نه خوړله ولي چه دَی دَ داؤد دَپارَ غمجن شه ځکه چه
دي پلار سپک کړ

٣٥ او په صبا کښ داسي وشول چه يونتن پټي ته ووت دَ ٣٥
داؤد په مقرّر وقت کښ او کمکي هلک ورسره وه ٣٦ او هلک ته ئي ٣٦
ووېل وزغله هغه غشي چه زه ئي ولم ومومه او چه هلک وزغليده
نو يو غشي دَ هغه چه ورنه تېر شه وويشت ٣٧ او چه هغه ٣٧
هلک دَ هغه غشي ځاي ته راغي چه يونتن ويشتلي وه نو يونتن هغه
هلک ته ناره وکړه و ئي ويل هغه غشي له تانه په هغه خوا ندي
څه ؟ ٣٨ او يونتن په هغه هلک پسي ناره وکړه زرکوه ګړندي شه ٣٨
مه ودرېږه او دَ يونتن هلک هغه غشي راټول کړل او خپل خاوند
ته راغي ٣٩ او هغه هلک هيڅ و نه پوهيده تش يونتن او داؤد ٣٩
په هغي خبري پوهيدل ٤٠ او يونتن خپله وسله هغه هلک ته چه ٤٠
ورسره وه ورکړه او ورته ئي ووېل لاړ شه ښهر ته ئي ننباسه
٤١ او چه هغه هلک لاړ شه نو داؤد دَ جنوب له طرف نه پورته شه او ٤١
زمکي ته په مخ پرېوت او دري واره ئي سجده وکړه او دوي يو تر بله
ښکل کړل او يو تر بل ئي وژړل تر هغه چه داؤد زيات وکړه ٤٢ او ٤٢
يونتن داؤد ته ووېل په سلامتيا سره دروه ځکه چه موږ
دواړه دَ خداوند په نوم کښ قسم خوړلي دَي په دي ويلو سره
چه خداوند به ځما په مينځ کښ او ستا په مينځ کښ او ځما دَ

نسل په ميْنځ کښ او ستا دَ نسل په ميْنځ تر ابدَ پوري وِي او
هغه پورته شه او لاړ شه او يونتن ښهر ته ورغي ✣

# يو ويشتم باب

۱ آ او داؤد نوب ته راغي اخيملک کوهين ته او اخيملک په لړزيدلو
سره د داؤد وملاقات ته ورغي اوورته ئې وويل ته ولي يواځي يي او هيڅ
۲ سړي درسره نشته ۲ او داؤد اخيملک کوهين ته وويل بادشاه
يوه خبره وفرمايله او ما ته ئي وويل چه سړي دِ پوه نه شي
دَ هغي خبري په باب چه په هغي دِ آستولم او چه ما درته فرمايلي
دِي او ما هغه ځوانان فلاني او فلاني ځاي کښ مقرّر کړي دِي -
۳ ۳ او اوس ستا دَ لاس ترلاندِ څه دِي ځما په لاس کښ پنځه
۴ ډوډئ راکړه يا هغه چه مونده کيږِي ۴ او هغه کوهين داؤد ته
ځواب ورکړ او وئي ويل عامه ډوډئ ځما دَ لاس دَ لاندِ نشته ليکن
مقدّسه ډوډئ شته که چري هغو ځوانانو خپل ځانونه له ښځو
۵ ساتلي وِي ۵ او داؤد کوهين ته ځواب ورکړ او ورته ئې وويل چه
په رښتيا سره ښځي له مونږ نه تريبًا دري ورځي منع شوي دِي ځما
په وتلو کښ او دَ ځوانانو کالي پاک دِي او هغه لار عامه وه او نن
۶ ورځ ځوسره زيات دَدوي کالي به پاک شي ۶ او هغه کوهين ورته
قدوسه ورکړه ځکه چه هلته ډوډئ نه وه بي دَ حضور له ډوډئ نه
چه دَ خداوند له حضوره لري کړي شوه تا چه توده ډوډئ کيښودلې
۷ شِي په هغه ورځ کښ چه واخستلي شوه ۷ او په هغه ورځ دَ شاؤل
له نوکرانو نه هلته يو سړي وه دَ خداوند په مخ کښ بند کړي شه او نوم
۸ ئې دوايغ وه ادومي سردار دَ شاؤل دَ غوبنو ۸ او داؤد اخيملک ته وويل
او دلي نشته ستا دَ لاس ترلاندِ برچه يا توره ځکه چه ما په خپل لاس
خپله توره او نه خپلي وسلي را آخستلي دِي ځکه چه دَ بادشاه خبره په

بیرې سره وه ۹ او هغه کوهین وویل چه توره دَ جلیاتَ فلستي ۹
هغه چه تا دَ ایلاَه په خوړ کښ وواهه گوره هغه په جاي نغښتلي
دَ افودَ دَ ورستو دهٔ که ته ئې اخلې نو وا ئې خله ځکه چه دلې بې له
دې بله دلته کښ نشته او داؤدَ وویل دَ هغې په شان بله نشته
رائې کړه ۱۰ او داؤدَ پورته شه او هغه ورځ دَ شاؤلَ له مخ نه ۱۰
وتښتیده او اکیشَ ته راغې بادشاه دَ جاتَ ۱۱ او دَ اکیشَ نوکرانو ۱۱
ورته وویل دا داؤدَ نه دَې بادشاه دَ زمکې څه؟ هغوي ذده په
باب کښ نڅواب نه غړاوه په گډیدلو سره و ئې ویل
شاؤلَ په زرگونو ووهل او داؤدَ په لاکونو ووهل
۱۲ او داؤدَ دغه خبرې په خپل زړه کښ کیښودلې او دَ اکیشَ بادشاهٔ ۱۲
دَ جاتَ له مخ نه ډیر وویریده ۱۳ اوخپله پوهه ئې دَ دوي په سترگو ۱۳
کښ بدله کړه او ځان ئې دَ دوي په لاسونو کښ لیونی کړ او لیکې
ئې دَ دروازې په پلو شکلې او لاړې ئې په خپلې ږیرې کوزې تویولې
۱۴ نو اکیشَ خپلو نوکرانو ته وویل گوره تاسو وینئ چه دا سړیَ ۱۴
لیونې دَې ولې تاسو مانه راوستلې دَې څه حاجت دَې دَ لیونو
ماله چه دغه په ما باندِ ځان لیونې کوي دغه به څما په کور کښ
راشي څه؟ ✤

# دوه ویشتم باب

۱ او داؤدَ له هغه ځاي نه لاړ شه او دَ عدولاَم په مغاره کښ ۱
ئې ځان خلاص کړ او چه دَ هغه ورونړو او دَ هغه دَ پلار ټول
کور واوریدل نو هلته ورکوز شول ۲ او هرڅوک چه په تنگ کښ ۲
وه او هر څوک چه پوروړي وه او هرڅوک چه ترخ ځاني وه خپل
ځانونه ئې ورجمع کړل او دي په هغوي باندِ سردار شه او ورسره
په قدر څلور سوه سړي وه
۳ او داؤدَ له هغه ځاي نه دَ موآب مصفاه ته لاړ شه او دَ ۳

موآب بادشاه ته ئي ووِچه خما پلار او خما مور دِ تاسو ته در ووزِي
۴ تر هغه پوري چه پوهه شم چه الله به له ما سره څه وكړِي؟ ۴ او
دوي ئي دَ موآب دَ بادشاه په مخ كښ راوستل او دوي ورسره اوسيدل
۵ ټولي ورځي چه داؤد په څيودي كښ وه ۵ او جاد نبِي داؤد ته وويل
چه په څيودي كښ مه اوسه دَ يهودا زمكي ته ورشه نو داؤد لاړ
شه دَ حارث ځنګل ته راغي
۶ ۶ او شاؤل واوريدل چه داؤد معلوم شه او هغه سړِي چه
ورسره وُو او شاؤل په جبعه كښ دَ هغه غزه دَوني لاندِ په راما
كښ ناست وه او بُرچه ئي په لاس كښ وَه او ټول نوكــران ئي
۷ ورته ولاړ وُو ۷ او شاؤل خپلو نوكرانو ته چه ورته ولاړ وُو وويل
واوريِ اي بنيمينو بنِي يسّي به تاسو ټولو ته پټي او تاكستانونه
دركړِي تاسو ټول به سرداران دَ زركونو او سرداران دَ سوونو جوړ
۸ كړِي ۸ چه تاسو ټول په ما باندِ باغيتوب وكړ او هيڅوك نشته چه
راڅرګند كړِي هركله چه خما خوي بنِي يسّي سره وعده ترِي او هيڅوك
له تاسو نه نشته چه په ما غم وكړِي ياچه ماته څرګند كړِي چه خما
خوي خما نوكر په ما باندِ پورته كړِي دَيَ چه په پسوني كښ كيني لكه چه نن
۹ ورځ دي ۹ او دوايغ هغه ادومي خواب وركړ چه دَ شاؤل په نوكرانو ولاړ
۱۰ وه او وئي ويل ما بنِي يسّي وليد چه نوب ته راغي ــ او اخيملك
بنِي اخيطوب ته ۱۰ او هغه دَده دَپارَ له خداوندَ سوال وكړ او خوراك
۱۱ ئي وركړ او دَ هغه فلستي جلياث تُوره ئي وركړه ۱۱ او بادشاه دَ اخيملك
بنِي اخيطوب دَ هغي كوهين دَ بللو دَپارَ واستاوه او دَده دَ پلار دَ
ټول كور هغه كوهينان چه په نوب كښ وُو او هغه ټول بادشا
۱۲ ته راغلل ۱۲ او شاؤل وويل اي بنِي اخيطوب واوره او ده وويل اي
۱۳ خما خاوندَ ګوره زه يم ۱۳ او شاؤل ورته وويل ولي تاسو به ما باندِ
باغيان شوِي يئِ ته او بنِي يسّي به دي چه تا ورته ډوډيِ او تُوره

ورکړل او دَ ده دَپارَ دِ له الله نه سوال وکړ چه په ما باندِ دِ په
۱۴ پسوني پورته نِښي لکه چه نن ورځ دي ۱۴ نو اَخيملک بادشاه ته ځواب
ورکړ او وئي ويل چه ستا دَ ټولو نوکرانو په مينځ کښِ څوک داسي
امانت دار دئي لکه چه داؤد اوچه دَ بادشاه خوم دي او ستا ميراخور
۱۵ دي او ستا په کور کښِ عزّت دار دي ؟ ۱۵ نن ورځ ما دَدي دَپارَ له
الله نه دَ سوال کولو شروع کړي ده ؟ داسي دِ نه وِي بادشاه دِ
په خپل بنده هيڅ خبره نږدي او نه څما دَ پلار ټول کور ته ځکه چه
۱۶ ستا بنده په دي ټولو يا زيات يا کم نه پوهيده ۱۶ او بادشاه وويل
اي اَخيملکَ ته به په مرګ سره مړ شي ته او ستا دَ پلار ټول کور
۱۷ ۱۷ او بادشاه هغه زغليدونکو ته چه ورته ولاړ وُو وويل وګرځئ
او دَ خداوند کوهينان مړه کړئ ځکه چه دَ هغوي لاس هم له داؤد
سره دي او ځکه چه دوي وپوهيدل چه دي تښتيدونکي وه او ما ته
ئي څرګنده نه کړه لیکن دَ بادشاه نوکرانو ونه غوښتل چه خپل
۱۸ لاسونه اوږده کړي او دَ خداوند په کوهينانو باندِ پريوزي ۱۸ او
بادشاه دوايغ ته وويل ته وګرځه او په کوهينانو باندِ پريوزه او
دوايغ هغه ادومي وګرځيده او هغه دَ خداوند په کوهينانو باندِ
پريوت او هم په هغه ورځ ئي پنځه اتيا سړي چه کتانِي افود اغوستونکي
۱۹ وُو مړه کړل ۱۹ او نوب دَ کوهينانو ښهر ئي دَ توري په مخ سره وواهه
سړي او ښځي هلکان او پيِ رودونکي او غوايان او خرونه او ميږي
۲۰ ئي دَ توري په مخ ۲۰ او يو ځوي دَ اَخيملک بِني اَخيطوب چه نوم ئي
۲۱ اَبياتر وه خلاص شه او داؤد ته وزغليده ۲۱ او اَبياتر داؤد ته
۲۲ ښکاره کړل چه شاؤل دَ خداوند کوهينان قتل کړي وُو ۲۲ او
داؤد اَبياتر ته وويل زه وپوهيدم په هغه ورځ کښِ چه دوايغ
ادومي هلته وه چه هغه به په ښکارولو سره شاؤل ته ښکاره
۲۳ کړي زه ستا دَ پلار دَ کور دَ ټولو ځانونو سبب يم ۲۳ له ما سره قرار

اوسه مه ویریږه ځکه هغه چه ستاځان لټوي زماځان لټوي لیکن ته به
له ما سره په ساتني کښې شي ❊

# درې ویشتم باب

۱ آ او دوی داؤد ته خبر کنده کړه ویل ئې ګوره فلستیان په قعیلا
۲ جنګ کړي او دَ هغوي درمندونه لوټوي ۲ او داؤد له خداونده
سوال وکړ و ئې ویل لاړ شم او دغه فلستیان ووهم او خداوند
داؤد ته و ویل لاړ شه او فلستیان ووهه او قعیلا خلاصه کړه
۳ ۳ او دَ داؤد سړو ورته وویل ګوره مونږ دلي په یهودا کښې ویریږو
اوڅومره زیات چه لاړ شو قعیلې ته په خلاف دَ صفونو دَ فلستیانو
۴ ۴ نو داؤد بیا زیات وکړه چه له خداوندَ سوال وکړي او خداوند
ځواب ورکړ او وئي ویل پورته شه قعیلا ته کوز شه ځکه چه زه به
۵ فلستیان ستا په لاس کښې درکړم ۵ او داؤد او دَ هغه سړي قعیلا
ته لاړل او له فلستیانو سره ئې جنګ وکړ او دَ دوي مویشي ئې راوستل
اوهغوي ئې په لوي وهني سره ووهل او داؤد دَ قعیلا اوسیدونکي
خلاص کړل
۶ ۶ او داسي وشوه چه ابیاتر دَ اخیملک ځوي داؤد ته وتښتیده
۷ نو قعیلا ته کوز شه دَ هغه په لاس کښې افود وه ۷ او شاؤل ته
خبر کنده شوه چه داؤد قعیلا ته راغي او شاؤل وویل الله هغه
زما په لاس کښې و سپاره ځکه چه په ده باندِ بند شوي دَي دَ
۸ ښهر په داخلیدلو کښې چه دروازه او اړمونه لري ۸ او شاؤل ټول
امّت راوباله دَ جنګ دَپارَ دَ کوزیدلو قعیلا ته چه داؤد او دَ هغه
۹ سړي قلعه بند کړي ۹ او داؤد وپوهید چه شاؤل شرارت ورباندِ
په پټه سره وکړ او ده ابیاتر کوهین ته وویل هغه افود راوړې
۱۰ کړه ۱۰ او داؤد وویل اي خداوند الله دَ اسرائیل ستا بندهٔ آوریدلي

دِي چه شاؤل لټونه کوِي قعيلا ته راڅي دَپارَ دَ ښهر دَ نيست
کولو ځما په سبب ١١ دَ قلعي خاوندان به مِ دَ هغه په لاس کښِ ١١
و سپارِي څه ؟ شاؤل به راکوز ښِي لکه چه ستا بنده آوريدلي دِي
اي خداوند الله دَ اسرائيل خپل بنده ته ښکاره کړه زه تا ته زارِي
کوم او خداوند و ويل راکوز به ښِي ١٢ او داؤد وويل دَ قعيلا خاوندان ١١
به ما او ځما سړِي دَ شاؤل په لاس کښ وسپارِي نو خداوند
وويل و به دِ سپارِي ١٣ نو داؤد او دَ هغه سړِي چه په قدر دَ ١٣
شپږو سوو وُو پورته شول او له قعيلا نه ووتل او لاړ شول هر
چرته چه تللي شول او شاؤل ته ښکاره شوه چه داؤد له قعيلا
نه خلاص شه او دي له وتلو نه پاتي شه
١٤ او داؤد په بيابان کښ اوسيده په ځودي کښ او دَ زيپ ١٤
دَ بيابان په کوهستان کښ اوسيده او شاؤل به هره ورځ هغه
لټاوه ليکن الله دَ هغه په لاس کښ نه ورکاوه ١٥ او داؤد ١٥
وليدل چه شاؤل دَ ده دَ ځان دَ لټولو دَپارَ ووت او داؤد دَ
زيپ په بيابان کښ په کنز بنړ کښ وه ١٦ او يونتن دَ شاؤل ځوي ١٦
پورته شه او لاړ شه داؤد ته په کنز بنړ کښ او دَ هغه لاس
ئِي په الله ټکوه کړ ١٧ او ده ورته وويل مه ويريږه ځکه چه ځما دَ ١٧
پلار شاؤل لاس به دِ و نه مومِي او ته به په اسرائيل کښ بادشاهي
وکړِي او زه به تا له دويم شم او ځما پلار شاؤل هم داسي
پوهيږِي ١٨ او هغو دواړو دَ خداوند دَ وړاندِ وعده وتړله او داؤد ١٨
په کنز بنړ کښ اوسيده او يونتن خپل کورته لاړ شه ١٩ نو ١٩
زيفيان شاؤل ته وختل جبعي ته و ئِي ويل داؤد ځمونږ سره په
ځيودي کښ په کنز بنړ کښ دَ حقيلا په غره کښ چه دَ يشيمون
په شمال کښ دي ځان نه پټوِي څه ؟ ٢٠ او اوس اي بادشاه ستا ٢٠
دَ ځان دَ تلول خواهش په موافق په کوزيدلو راکوز شه او دا په

۲۱ صونږه ده چه هغه به دَ بادشاه په لاس کښې وسپارو ۲۱ او شاؤل
وویل چه تاسو دَ خداوند مبارک یئ ځکه چه تاسو په ما باندِ
۲۲ شفقت وکړ ۲۲ دروميْ زیاته ټینګه وکړئ او وپوهیږئ او ووینئ
دَ هغه مکان چه هلته دَ هغه پښي دِي چا هغه هلته ولید
۲۳ ځکه چه ماته وویلي شول چه دي ډیر مکر کوي ۲۳ نو وګورئ او
پوه شئ له ټولو پټو ځایونو نه چه هلته هغه خپل ځان پټوي او
تاسو ماته په ټینګه سره بیا راشئ او زه به درسره دروم او داسي
به وشي که چري دغه په زمکه کښې وي نو زه به هغه دَ یهودیانو
۲۴ په ټولو زرګونو کښې ولټوم ۲۴ او دوي پورته شول او دَ شاؤل دَ
وړاندِ زیپ ته لاړ شول او داؤد او دَ هغه سړي دَ ماعون په
۲۵ بیابان کښې په عرابه دَ یشیمون کښې په شمال کښې وُو ۲۵ او شاؤل
او دَ هغه خلق دَ هغه دَ لټولو دَپارَ لاړ شول او داؤد ته دوي
خبر ورکړ او هغه پرښي ته راکوز شه او دَ ماعون په بیابان کښې
اوسیده او چه شاؤل دا واوریدل نو په داؤد پسي دَ ماعون په
۲۶ بیابان کښې ورپسي شه ۲۶ او شاؤل دَغره په دي طرف او داؤد
اودَده سړي دَغره په هغي طرف وُو او داؤد دَ شاؤل له مخ نه په
ویره سره په تړپ ئه او شاؤل او دَده سړیو داؤد اودَده سړي دَ
۲۷ نیولو دَپارَ کیر کړل ۲۷ لیکن یو قاصد شاؤل ته راغي وئي ویل زرکوه
۲۸ دروه ځکه چه فلستیانو په زمکه داړه وکړه ۲۸ نو شاؤل دَ داؤد
له ورپسي تللو نه راوګرزیده او دَ فلستیانو ملیا کیدلو ته لاړ شه
۲۹ دي دَپارَ هغوي هغه ځاي صلع مخلقات وباله ۲۹ او داؤد له هغه
ځاي نه وخوت او دِ عین جدي په ځیودي کښې اوسیده *

## څلور ویشتم باب

۱ ۱ او چه شاؤل دَ فلستیانو له ورپسي نه راوګرزیده نو داسي

وشوه چه هغوي ده ته ښکاره کړه ویل ئي کوره داؤد دَ عینِ جدِي په
بیابان کښ دَي ۲ نو شاؤل دري زره چنړ کړي سړي له ټول اسرائیلو ۲
نه واخستل او دَ داؤد او دَده دَ سړو دَ لټولو دَپارَ لاړل دَ وځانو
په غاښو باندِ ۳ او دي دَ میږو شپولونو ته چه په لارې کښ وُو ۳
ورغي او هلته کښ یو غار وه او شاؤل ورننه وت چه خپلي پښي
پټي کړي او داؤد او دَده سړي دَ غار په کوشو کښ ناست وُو ۴ نو دَ ۴
داؤد سړیو ده ته وویل کوره نن ورځ هغه چه خداوند دَ هغه په
باب کښ درته وویل چه کوره زه به ستا دُښمن ستا په لاس درکړم
او ته به په هغه هسي وکړي چه ستا په سترګو کښ ښه وِي نو
داؤد پورته شه او پټ ئي دَ شاؤل، دَ قبا لمن پریکړه ۵ او پس له دَغه ۵
داسي وشوه چه دَ داؤد زړه ئي وواهه په هغه چه دَ شاؤل دَ قبا
لمن ئي پریکړه ۶ او ده خپلو سړو ته وویل چه دَ خداوند له لورِي دِ ۶
راته داسي نه وِي چه زه دا کار دَ خپل خاوند مسیح دَ خداوند سره
وکړم او خپل لاس هغه ته اوږد کړم ځکه چه هغه مسیح دَ خداوند
دَي ۷ نو داؤد خپل سړِي په دي خبري سره وترټل او پرِي ئي نه ښودل ۷
چه په شاؤل پورته شي او شاؤل له غارَ پورته شه او په خپلي
لاري لاړ ۸ نو پس له دَغه داؤد پورته شه او له غارَ ووت او په ۸
شاؤل پسي ئي ناره وکړه ویل ئي اي خاوندَ بادشاه او چه شاؤل په
ورستو وکتل داؤد زمکي ته خپل مخ ټیټ کړ او سجده ئي وکړه ۹ او ۹
داؤد شاؤل ته وویل چه ته ولي دَ سړو خبري اوري چه وایي کوره
داؤد ستا آزار لټوِي ۱۰ کوره نن ورځ ستا سترګو دا ولیدل چه ځنګه ۱۰
خداوند ته نن ورځ ځما په لاس په غار کښ راکړي او راته وویلي شول
چه زه دِ مړ کړم لیکن ما په تا شفقت وکړ و مِ ویل چه زه به خپل
لاس خپل خاوند ته اوږد نه کړم ځکه چه دَي دَ خداوند مسیح
دَي ۱۱ وکوره اي ځما پلاره ستا دَ قبا لمن ځما په لاس کښ هم ۱۱

وګوره نو ستا دَ قبا دَ لمني پريکولو او تا له دَ نه وژللو نه پوه شه
اوګوره چه څما په لاس کښ نه شرارت دَي نـه تقصير او نه مِ
۱۲ ستا خطا کړي دَه او ته څما ځان ښکار کوي چه وائي خلي ۱۲ خداوند
دِ څما په مينځ کښ او ستا په مينځ کښ عدالت وکړي او څما بدله دِ
۱۳ خداوند له تا نه واخلي ليکن څما لاس به په تا نه وِي ۱۳ لکه چه
پخواني متل وائي چه له شريرانو نه به شر ووزي ليکن څما لاس به
۱۴ په تا نه وِي ۱۴ په چا پسې دَ اسرائيل بادشاه وتلي دَي او په چا پسې
۱۵ ته زغلي؟ په مړ سپي پسې په يوې وربې پسې ۱۵ او خداوند دِ عادل
شي او څما په مينځ کښ او ستا په مينځ کښ دِ حکم وکړي او وِ دِ
وېني او څما په مقدّمې کښ دِ دعوىٰ وکړي او ستا له لاسه مِ دِ
۱۶ خلاص کړي ۱۶ او داسې وشول چه داؤد شاؤل ته له دې خبرې ويلو
نه وزګار شه نو شاؤل ووېل چه دا ستا آواز دَي اې څما ځويه
۱۷ داؤدَ؟ او شاؤل خپل آواز پورته کړ او وئې ژړل ۱۷ نو داؤد ته ئې
ووېل چه ته له ما نه زيات صادق يئې ځکه چه تا ماته دَ ښېګړې
۱۸ بدله راکړې دَه او ما تاته دَ بدئ بدله درکړې دَه ۱۸ او نن دِ ښکاره
کړه چه تا له ما سره ښېګړه وکړه ځکه چه خداوند زه ستا په لاس کښ
۱۹ درکړې وم او مړ دِ نه کړم ۱۹ او چه سړي خپل دُښمن ومومِي نو هغه
به دَ ښېګړې په لارې روان کړي څه ؟ نو خداوند دِ تاته دَ ښېګړې
۲۰ بدله درکړي دَ هغې دَپارَ چه له ما سره دِ نن وکړه ۲۰ او اوس ګوره زه
پوه شوم چه ته به په يقين سره بادشاه شې او چه دَ اسرائيل
۲۱ بادشاهي به ستا په لاس کښ قائمه شي ۲۱ نو ته اوس په خداوند
سره راته قسم وکړه چه ته به پس له ما نه څما اولاد نه پرېکوې او
۲۲ نه به څما نُوم څما دَ پلار له کورنه نيست کوې ۲۲ نو داؤد شاؤل ته قسم
وخوړ او شاؤل خپل کور ته لاړ ليکن داؤد او دَ ده سړي څيودې
ته وختل ✣

# پنځه ويشتم باب

۱ آ او سموايل مړ شه او ټول اسرائيل جمع شول او ويرئي وکړ
او په رامه کښ ئي دَده په کور کښ ښخ کړ او داؤد پورته شه او
دَ فاران بيابان ته کوز شه
۲ ۲ او په ماعون کښ يو سړي وه او دَده کارونه په کرمل کښ
وُو او هغه سړي ډير لوي وه او دري زره ميږي او زر بزي ئي
۳ لرلي او خپلي غيلي به ئي په کرمل کښ سکښتلي ۳ او دَ هغه سړي
نوم نابال وه او دَ هغه دَ ښځي نوم اِبيجايل وه او هغه ښځه نيک
فهمه او ښائسته صورته وه او هغه سړي سخت او بداعماله وه او
۴ هغه کالبي وه ۴ او داؤد په بيابان کښ واوريدل چه نابال خپلي
۵ ميږي سکښتي ۵ نو داؤد لَس ځوانان واستول او داؤد هغو ځوانانو
ته وويل چه کرمل ته وخيژئ او نابال ته ورشئ او ځما په نوم
۶ دَده دَ سلامتيا پوښتنه وکړئ ۶ او داسي ووايئ ژوندي يي او ته
سلامت يي او ستا کور سلامت دَي او هر څه دِ سلامت دِي
۷ ۷ او اوس ما واوريدل چه تا ځخه سکښتونکي دِي هرکله چه ستا
شپانه له مونږ سره وُو مونږ و نه آزارول او دَ هيڅ ڜي بازخواست
۸ ورته نه وه ټولي ورځي چه دوي په کرمل کښ وُو ۸ ته له خپلو
ځوانانو نه پوښتنه وکړه او دوي به تا ته ښکاره کړي او هغه
ځوانان دِ ستا په سترګو کښ نعمت ومومي ځکه چه مونږ په ښي
ورځي کښ راغلي يُو نو چه ستا لاس ئي مومي خپلو نوکرانو ته اوخپل
۹ ځوي داؤد ته ئي ورکړه ۹ اوچه دَ داؤد ځوانان راغلل نو دوي نابال
ته دَ هغو ټولو خبرو په موافق دَ داؤد په نوم خبره وکړه او ودريدل
۱۰ ۱۰ نو نابال دَ داؤد نوکرانو ته ځواب ورکړ و ئي ويل چه داؤد څوک
دَي او دَ يِسّي ځوي څوک دَي نن ورځ ډير نوکران دِي چه هر يو

١١ دَ خپل خاوند دَ وړاندِ چوِي ١١ نو زه به خپله ډوډۍ او خپلې اوبه
واخلم او هغه حلال شوي چه ما دَ خپلو سکښتونکو دَپارَ حلال
کړي دِي او هسي سړو ته ورکړم چه نه ئې پېژنم چه له کومه دِي
١٢ ١٢ نو دَ داؤد ځوانان خپلې لارې ته وګرځېدل او وجاروتل او
١٣ راغلل او دَ هغو ټولو خبرو په موافق ئې ورته ښکاره کړي ١٣ نو
داؤد خپلو سړو ته وويل چه هر يو دِ له تاسي نه خپله توره وتړي
نو هر يو خپله توره وتړله او داؤد هم خپله توره وتړله او په داؤد
پسي په قدر دَ څلورو سوه سړو وختل او دوه سوه اسباب څخه
١٤ باتي شول ١٤ او يو ځوان له ځوانانو اَبيجايل دَ نابال ښځي ته څرګنده
کړه و ئې ويل ګوره داؤد له بيابانه قاصدان را واستول چه
١٥ څمونږ خاوند ته برکت وغواړي او دَي په هغو ونښت ١٥ او هغه
سړي له مونږ سره ډېر ښه وُو او مونږ ئې سپک نه کړو او نه
له مونږ نه ټولي ورځي څه شي ورک شه چه مونږ ورسره ګرزيدلو
١٦ چه مونږ په پټيو کښي وُو ١٦ دوي مونږ له هم شپه هم ورځ ديوال
١٧ وُو ټولې ورځي چه مونږ به ورسره ميږي څرولې ١٧ او اوس پوه
شه او ګوره چه څه به وکړې ځکه چه شر څمونږ په خاوند او
دَده په ټول کور مقرر شوي دَي او دي داسي بني بليعال دَي چه
١٨ خبره ورسره کېدلې نه شي ١٨ نو اَبيجايل بيړه وکړه او دوه سوه
(ګردي) دَ ډوډۍ ئې واخستلې او دوه ژي دَ شرابو او پنځه تيار کړي
شوي ګډورِي او پنځه اوړي دَ نينو او دوه سوه خوشي دَ مويزانو
١٩ او دوه سوه دبلي دَ انځيرو او هغه ئې په خرې کېښودل ١٩ او خپلو
ځوانانو ته ئې وويل چه څما دَ وړاندِ دروځئ ګورئ زه درپسي درځم
٢٠ او خپل سړي نابال ته ئې څرګنده نه کړه ٢٠ او چه لا دا په خره
سوره وه او دَ غره په څوړ کښي کوزيدونکي وه ګوره چه داؤد او
دَده سړي دَدې مخې له کوزيدونکي راغلل او دا له دوي سره او

دوي له دي سره ملاتي شول ٢١ او داؤد ويلي وُو په باطل سره ما هغه ټول ٢١
څه چه دوي په بيابان کښ وُو وساتل او هيڅ شئ له هغو ټولو
دده نه ورک نه شه او هغه دَ ښيګړي په بدله کښ بدي راوګرزوله
٢٢ هم.هسي دِ الله دَ داؤد دَ دښمنانو سره وکړي او له دي نه زياتي ٢٢
که چري زه له هغو ټولو نه چه دَده دِي دَ صبا تر رڼا پوري يو نر
هلک پريږدم ٢٣ او چه اَبيجايل داؤد وليد بيړه ئي وکړه او له خره نه ٢٣
کوزه شوه او دَ داؤد دَ وړاندِ په مخ پريوته او زمکي ته ئي سجده
وکړه ٢٤ او په پښو ئي پريوتله و ئي ويل اي خاوندَ دا بدِي دِ په ما ٢٤
وِي په ما وِي او اوخپله وينځه پريږده چه ستا په غوږونو کښ خبره
وکړِي او دَ خپلي وينځي خبره واوره ٢٥ څما خاوند دِ خپل زړه په ٢٥
دغه بليعال سړِي کښيږدِي په ناباَل لکه چه دَ هغه نُوم دَي
هسي هغه دَي ناباَل ئي نُوم دَي او احمقي ورځنه دَه. او ما ستا
وينځي څما دَ خاوند ځوانان چه وا دِ ستول ليدلي نه دِي ٢٦ او اوس ٢٦
اي څما خاوندَ ښيوه حي دئي او ستا ځان ژوندي دَي هرکله چه
خداوند ته منع کړي يي دَ ننه وتلو دَ خونَ او له بدل اخستلو
په خپل لاس سره ستا دَ ځان دَپارَ نو اوس دِ ستا دښمنان او
هغوي چه څما دَ خاوند دَپارَ شرارت لټوِي دَ ناباَل په شان دِ وِي
٢٧ او اوس دا برکت چه دي وينځي خپل خاوند ته راوړِي دي هغو ٢٧
ځوانانو له دِ ورکړِي شي چه څما په خاوند پسي ګرزِي ٢٨ دَ خپلي ٢٨
نوکري تقصير پورته کړه ځکه چه خداوند څما دَ خاوند دَپارَ به دَ
امانت کور په جوړولو سره جوړ کړِي ځکه چه څما خاوند دَ خداوند
په جنګونو جنګيږِي او بدِي به ستا په ټولو ورځو کښ په تا کښ
و نه موندلي شِي ٢٩ او که سړِي پورته شه چه ستا ځان ولټوِي ٢٩
او په تا پسِي شِي ليکن څما دَ خاوند ځان دَ ژوندانه په ښيټي کښ
دَ خداوند ستا دَ الله سره به وتړلي شِي او هغه به ستا دَ

٢٩ ذَ ښمنانو ځانونه و وِلي لکه دمچوغني دتيږله مينځ ٣٠ او داسي به وشي
هرکله چه خداوند ځما خاوند ته عمل وکړي دَ هغي ټولي ښيګړي
په شان چه ستا په باب ئي کلام وکړ اوته ئي په اسرائيل امير
٣١ کړي يي ٣١ نو تا له به دَدي هيڅ انديښنه نه وِي اوځما دَ خاوند
زړه ته به هيڅ تيندک نه وِي ياکه ته بي سببَويني تويوي ياکه
ځما خاوند دَ خپل ځان دَپارَ بدله واخستله او هرکله چه
خداوند ځما له خاوند سره ښيګړه وکړِي نو خپله نوکره په يادکړه
٣٢ ٣٢ او داؤد اِبيجال ته ووېل مبارک دِوي خداوند الله دَ اسرائيل
٣٣ چه نن ورځ ئي ته واستولي ځما دَ ملاقات دَپارَ ٣٣ او مبارک دِ
وِي ستا فهم او مبارکه ته يي چه زه دِ نن ورځ دَ وينو له نتوتلو
٣٤ او دَ خپل لاس له بدل آخستلو نه پاتي کړلم ٣٤ او په رښتيا
سره خداوند الله دَ اسرائيل حَي دَيَ چه زه ئي منع کړلم ستا
له زيان کولو نه چه که تا بيړه کړي نه ويَ اوځما دَ ملاقات دَپارَ
راغلي نه ويَ نو دَ صبا تر روښنائي پوري به دَ نابال هيڅ نرهلک
٣٥ پاتي شوي نه وه ٣٥ نو داؤد دَ هغي له لاس نه هغه چه ئي ورته
راوړِي وُو واخستل او ورته ئي ووېل په سلامتيا سره خپل کورته
لاړه شه ګوره ستا آواز مِ واوريده او ستا مخ مِ پورته کړ-
٣٦ ٣٦ او ابيجال نابال ته ورغله اوګوره چه دَده په کور کښي داسي
ميلمستيا وَه لکه ميلمستيا دَ بادشاه او زړه دَ نابال په هغه
کښي خوښ وه او ډير په نشه کښي وه او هيڅ خبره ئي ورته ځرګنده
٣٧ نه کړه نه وړوکي نه لويه دَ صبا تر روښنائي پوري ٣٧ او په صبا
داسي وشول هرکله چه شراب له نابال نه ووتل نو دَ هغه ښځي
دَ هغه خبري ورته ځرګندي کړي او زړه دَده په ده کښي دننه
٣٨ مړ شه او دَ کاڼي په شان شه ٣٨ او لَسْ ورځي پس داسي وشول
٣٩ چه خداوند نابال په رنځ وواهه او هغه مړ شه ٣٩ او چه

داؤد واوریدل چه نابال مړ شه نو وئي ویل مبارک دِ وِي هغه
خداوند چه څما دَ پیغور مقدمه ئي دَ نابال له لاس نه په دعویٰ سره
وکړه او چه خپل بنده ئي له شرارت نه پاتي کړ اوخداوند دَ نابال
شرارت دَده په سر وِجاریوست او داؤد واستاوه او له اِبِجایل سره
۴۰ ئي خبره وکړه چه دَ څان دَپارَ ئي ښځي کیدو له واخلي ۴۰ او هرکله چه
دَ داؤد نوکران اِبِجایل څخه کرمِل ته ورغلل نو ورته ئي خبره وکړه
و ئي ویل چه داؤد موږ تا ته دَاستولي یُو چه هغه لره دِ ښځه واخلو
۴۱ ۴۱ او هغه پورته شوله او په خپل مخ ئي زمکي ته سجده وکړه او
وئي ویل گوره ستا نوکره یوه وینځه ده څما دَ خاوند دَ نوکرانو دَ
۴۲ پښو وینځلو دَپارَ ۴۲ او اِبِجایل بیړه وکړه او پورته شوله او په خره
سوره شوله له خپلو پنځو سهیلیو سره چه دَدي په پښو کښ گرزیدلي
۴۳ او هغه دَداؤد په استاځو پسي تلله او ښځه ئي شوله ۴۳ او داؤد
اخینوعم له یزرعیل واخستاله او هم دغه دواړه ئي ښځي شولي او شاؤل
میکل لُور خپله دَ داؤد ښځه فلطي بنِ لیش ته چه دَ جلیم وه ورکړه ❖

# شپږویشتم باب

۱ ۱ بیا زیفیان شاؤل ته په جبعه کښ ورغلل و ئي ویل چه داؤد
دَ حکیلاه په غره کښ چه دَ یشیمون په مخامخ دَي خپل ځان نه پټوي
۲ څه ؟ ۲ نو شاؤل پورته شه او دَ زیف بیابان ته کوز شه او ورسره
دري زره سړي چونړ کړي دَ اسرائیل وُو چه دَ داؤد لټونه دَ زیف
۳ په بیابان کښ وکړي ۳ او شاؤل دَ حکیلاه په غره کښ چه یشیمون
ته مخامخ په لاري کښ دَي ډیره شه او داؤد په بیابان کښ اوسیده
۴ او چه ده ولیدل چه شاؤل په ده پسي بیابان ته ورځي ۴ نو داؤد
جاسوسان واستول او پوه شه چه شاؤل په یقین سره راغي
۵ ۵ نو داؤد پورته شه او هغه ځاي ته ورغي چه شاؤل په کښ ډیره

وه نو داؤد هغه ځاي وليد چه شاؤل په کښ ملاست وه ابنير
بنِ نير سردار دَ لښکر دَده او شاؤل دَ کاډيو دَ ځاي په مينځ کښ
٦ ملاست وه او اُمت دَده نه چاپيره ډيره شه ٦ نو داؤد ځواب ورکړ
او اخيملک حِتي او ابيشيَ دَ ضرويه ځوي ورور دَ يواب ته ئي خبره
وکړه و ئي ويل څوک به له ما سره شاؤل ته ډيري ته کوز شي نو
٧ ابيشي و ويل چه زه به درسره کوز شم ٧ نو داؤد او ابيشي امت
ته دَ شپي ورغلل او کوره چه شاؤل دَ کاډيو دَ ځاي په مينځ کښ
٨ اوده ملاست وه او بُرچه ئي په زمکه ددَه سرخخه لګولي وه او ابنير او هغه
امّت دده چاپير ملاست وه ٨ او ابيشي داؤد ته وويل چه الله نن ورځ
ستا دښمن ستا په لاس کښ بندي کړي دي پرېږده چه اوس ئي
٩ په بُرچي زمکي ته ووهم په يوه ګزار سره ئي به بيا نه کړم ٩ او داؤد
ابيشي ته وويل ته ئي مه هلاکوه ځکه چه څوک دي چه خپل لاس دَ
١٠ خداوند مسيح ته اوږد وي شي او بي عيب شي ١٠ او داؤد وويل
خداوند حيَ دي خداوند به ئي و وهي او يا به دَده ورځ راشي او مړ
١١ به شي او يا به جنګ ته کوز شي او هلاک به شي ١١ هسي دِ ما لره
نه وِي دَ خداوند له لوريَ چه زه خپل لاس دَ خداوند په مسيح
باندِ اوږد کړم ليکن اوس هغه بُرچه چه دَده سر څخه دَه ورځله
١٢ او کوزه دَ اوبو او لاړ دِ شو ١٢ نو داؤد هغه بُرچه او دَ اوبو کوزه
دَ شاؤل له سر نه واخستله او لاړل او هيڅ يوه و نه ليدل او نه
پوه شول او نه ويښ شول ځکه چه هغوي ټول اوده وُو ولي چه
١٣ پرنا دَ خداوند په دوي پريوتلي وه ١٣ او داؤد پوري خوا ته تير شه
او دَ غره په سر له لري نه ودريده او دَدوي په مينځ کښ لوي ځاي
١٤ وه ١٤ او داؤد اُمّت ته ناره وکړه او ابنير دَ نير ځوي ته ئي وويل
چه اي ابنيرَ ته ځواب نه راکوي څه ؟ نو ابنير ځواب ورکړ او
١٥ وئي ويل چه ته څوک يي چه بادشاه ته ناري وهي ١٥ نو داؤد ابنير
١٦ ته وويل چه ګنړه ته سړي يي او ستا په شان په اسرائيل کښ

نشته نو تا ولې دَ خپل خاوند بادشاه ساتنه کړې نه دَه ځکه چه
له اُمّت نه يو درغلې وه چه ستا خاوند بادشاه هلاک کړي ۱۶ دا خبره ۱۶
چه تا وکړه ښه نه دَه خداوند ژوندے دے تاسي ځامن دَ مرګ يئ
ځکه چه تاسو دَ خپل خاوند چه مسيح دَ خداوند دے ساتنه ونه کړه
نو اوس وګوره هغه نيزه دَ بادشاه او کوزه دَ اوبو چه دَده
سرځنه وُه هغه چرته دِي ۱۷ او شاؤل دَ داؤد آواز وپيژاند او ۱۷
وئې ويل چه دا ستا آواز دے اے ځما ځويه داؤده نو داؤد ووېل چه
دا ځما اواز دے اے ځما خاونده بادشاه ۱۸ بيا ئې ووېل چه ځما ۱۸
خاوند په خپل غلام پسې ولې راغلې ځکه چه ما څه کړي دِي او
ځما په لاس کښې څه شرارت دے ۱۹ او اوس دِ ځما خاوند بادشاه ۱۹
دَ خپل غلام خبره واورِي نو که خداوند نه ځما په خلاف لمسولې
يئ نو هديه دِ بوي کړي او که دَ سړي ځامن وِي نو دَ خداوند دَ
وړاندِ دِ ملعونان شي ځکه چه هغوی نن ورځ وشړلم چه دَ
خداوند وراثت ته پيوسته نه شم چه وائي لاړ شه دَ نورو
خدايانو عبادت وکړه ۲۰ او اوس ځما وينې زمکي ته دَ خداوند دَ ۲۰
مخ دَ وړاندِ تويې نه شي چه دَ اسرائيل بادشاه وتلے دے چه دَ
يوي وربشي لټونه وکړي لکه چه څوک په غرونو کښې دَ زرکي ښکار
کوِي ۲۱ نو شاؤل ووېل ما خطا وکړه را وګرزه اے ځما ځويه داؤده ۲۱
زه به بيا بد درسره و نه کړم دې دَپاره چه ځما ځان ستا په سترګو
کښې نن ورځ قيمت بها وه ګوره ما احمقي وکړه او بيحده ډير
ګمراه شوے يم ۲۲ او داؤد ځواب ورکړ و ئې ويل ګوره دَ بادشاه نيزه ۲۲
او يو له ځوانانو نه دِ راشي وا دِ ئې خلي ۲۳ او خداوند به په ۲۳
هر يوه دَ هغه صداقت او دَ هغه امانت وګرزوي ځکه چه خداوند
نن ورځ ته ځما لاس ته راکړے وې او ما و نه غوښتل چه خپل
لاس دَ خداوند په مسيح اوږد کړم ۲۴ او ګوره لکه چه ستا ځان ۲۴

نن ورځ ځما په سترګو کښ لوي وګڼلې شه هم هسې دِ ځما ځان
۲۵ دخداوند په سترګو کښ لوي وګڼلې شي : نو دي به مِ له ټولو
تنګسو نه خلاص کړي ۲۵ نو شاؤل داؤد ته وويل ته مبارک يې
اې ځما ځويه داؤده ته به په کولو سره وکړي او په توانيدلو سره به
وتوانيږي - بيا داؤد په خپلې لارې لاړ او شاؤل خپل ځاي ته وګرزيده

# اوه ويشتم باب

۱ آ او داؤد په خپل زړه کښ وويل چه زه به يوه ورځ دَ شاؤل په
لاس کښ هلاک شم نو ما ته بې له دې نه هيڅ غوره نشته چه دَ
فلستيانو زمکې ته وتښتم نو شاؤل به له مانه نا اميدَ شي چه بيا مِ
دَ اسرائيل په ټولو حدونو کښ ولټوي او زه به دَ هغه له لاسه
۲ خلاص شم ۲ نو داؤد پورته شه او دې او هغه شپږ سوه سړي چه
۳ ورسره وُو اکيش بني معوک بادشاه دَ جات ته تير شول ۳ او داؤد
اکيش څخه په جت کښ دې او دَده سړي اوسيدل هر سړي او دَ
هغه کور داؤد او دَده دوه ښځې اخينوعم هغه يزرعيلې او ابيجايل ښځه
۴ دَ نابال کرمِلې ۴ او شاؤل ته خبر کنده شوله چه داؤد جت ته وتښتيده
۵ او ده بيا زيات هغه ونه لټاوه ۵ او داؤد اکيش ته وويل چه که
اوس ما ستا په سترګو کښ نعمت موندلې وي نو ما ته په يوه کلې
دَ ښهو کښ ځاي راکړه چه زه به هلته اوسم ولې دِ ستا بنده دَ
۶ بادشاهئ په ښهر کښ له تا سره اوسي ۶ نو اکيش په دغې ورځې
کښ څقلاغ ورکړ دې دَپارَ څقلاغ تر دې ورځې پورې دَ يهودا دَ
بادشاهانو شه
۷ ۷ او دَ هغو ورځو شمار چه داؤد دَ فلستيانو په ښهې کښ
۸ اوسيده يو کال څلور مباشتې وه ۸ او داؤد او دَده سړي وختل او
په جشوريانو او په جرزيانو او په عماليقيانو يُ داړه وکړه ځکه چه دَ غه
له قديمه دَ هغې زمکې اوسيدونکې وُو ستا دَ راتلو شور ته او دَ مصر

ورمکي ته ۹ او داؤد زمکه ووهله او يو سړي او ښځه ئې پرې نه ښود ۹
او ميږي او غوايان اوخره او اوښان اوجامې ئې واخستل او وګرزېد
او اکيش ته راغې ۱۰ نو اکيش ووېل چه نن ورځ مو په چا داړه کړې ده او ۱۰
داؤد ووېل په جنوبي دَ يهودا او په جنوبي دَ يرحميليانو او په جنوبي دَ
قينيانو ۱۱ او داؤد نه سړي نه ښځه پرېښودل چه جات ته ئې راولي ۱۱
وئې وېل چه هسې نه چه ځرګند مو کړي ووائي چه داؤد داسې وکړه
او ټولي ورځې د اوسيدلو دَده دَ فلستيانو په پټي کښې ئې داسې دستور
وه ۱۲ او اکيش داؤد رښتيني وګاڼه ويل ئې چه دئ دَ خپل اُمّت ۱۲
اسرائيلَ نفرتي شه او ماته به ترابدَ پوري مريي وي *

# اته ويشتم باب

۱ او په دغو ورځو کښې داسې وشوه چه فلستيانو خپلې لښکرې جمعَ ۱
کړلې چه دَ اسرائيل سره جنګ وکړي نو اکيش داؤد ته ووېل ته په
يقين سره پوه شه چه له ما سره به په لښکر کښې ورځې ته او ستا
سړي ۲ نو داؤد اکيش ته ووېل دې دَپارَ به ته پوه شې هغه چه ۲
ستا بنده به وکړي او اکيش داؤد ته ووېل چه زه به دِ ټولي ورځې
په خپل سر ساتونکي مقرّر کړم
۳ او سموايل مړ شه او ټول اسرائيل ئې وير کړي وه او په ۳
راماه کښې دَده په ښهر کښې ئې ښخ کړي وه او شاؤل دَ پيريانو
دوستان اوجادوګران له زمکي نه لرې کړل ۴ نو فلستيان جمع شول ۴
او راغلل او په شونيم کښې ډيره شول او شاؤل ټول اسرائيل جمع
کړل او په جلبُع کښې ډيره شول ۵ اوچه شاؤل دَ فلستيانو لښکر ۵
وليد نو وويريده او زړه ئې ډير ولړزيده ۶ او شاؤل له خداوند ۶
نه سوال وکړ اوخداوند ځواب ورنه کړ نه په خوبونو او نه په
اوريم او نه په نبيانو سره ۷ نو شاؤل خپلو نوکرانو ته ووېل چه ۷

خما دَپارَ یوه دَ پریانو دوسته ښځه ولټوئِ چه زه به هغې ته ورشم
او پوښتنه به ورنه وکړم نو دَده نوکرانو ورته ووئیل گوره یوه
۸ ښځه دَ پریانو دوسته په عین‌دور کښې ده ۸ نو شاؤل خپل ځان
بدل کړ او نوري جامې ئې واغوستلې او دوه سړي ورسره
لاړل او هغې ښځې ته دَ شپې ورغې او وئې وئیل چه ماته په
پریانو سره غیب‌گوئي وکړه او هغه ماته را وخیژوه چه زه درته
۹ ووایم ۹ او هغې ښځې ورته ووئیل گوره ته پوهیږې هغه چه شاؤل
وکړل چه څرنګ ئې دَ پریانو دوستان او جادوگران له زمکې نه پریکړل
۱۰ نو څه دَپارَ ته خما دَ ځان دَپارَ لومه ږدې چه مړه مې کړې ۱۰ نو
هغې ته شاؤل په خداوند قسم وخوړ و ئې وئیل چه یهوه حي
۱۱ دئ چه په دې خبرې کښې به هیڅ بد درملیا نه شي ۱۱ نو هغې ښځې
ووئیل چه زه څوک تاته در وخیژوم او هغه ووئیل ماته سموایل
۱۲ را وخیژوه ۱۲ اوچه هغې ښځې سموایل ولید په لوي آواز ئې ناره
وکړه او هغې ښځې شاؤل ته خبره وکړه وئې وئیل چه زه دِ ولې وغولولم
۱۳ او ته شاؤل یې ۱۳ او بادشاه هغې ته ووئیل مه ویریږه څکه چه
څه وینې او هغې ښځې شاؤل ته ووئیل چه ما خدایان ولیدل چه
۱۴ له زمکې نه خیژي ۱۴ او ده هغې ته ووئیل چه دغه صورت څرنګ دَ
او دې ووئیل زوړ سړي ختونکې او په قبا سره پټ شوي دَي نو
شاؤل پوه شه چه هغه سموایل دَي او په خپل مخ زمکې ته ټیټ
۱۵ شه او سجده ئې وکړه ۱۵ او سموایل شاؤل ته ووئیل چه تا ولې
ولړزولم چه را وِدِ خیژولم او شاؤل ووئیل چه زه ډیر په تنګسیا
کښې یم چه فلستیان جنګ راسره کوي او خداوند له مانه لرې
شه او بیا خواب نه راکوي نه په نبیانو سره نه په خوبونو سره نو
۱۶ ماته را وبللې چه وما پوهوې چه زه به څه وکړم ۱۶ نو سموایل ووئیل
چه ته له مانه ولې سوال کوې اوخداوند له تانه لرې شه او

دُښمن دِ شه ۱۷ او خداوند دَ خپل ځان دَپارَ چاره وکړه لکه چه ځما ۱۷
په لاس ئې خبره وکړه او خداوند ستا له لاسه بادشاهي شلولې دَه
او ستا گوانډي داؤد ته ئې ورکړې دَه ۱۸ ځکه چه تا دَ خداوند آواز ۱۸
وانه وریده او نه دِ دَده دَ غضب کرمې په عمالیق کښې وکړه دې دَپاره
خداوند داکار نن ورځ په تا کړې دي ۱۹ او خداوند به اسرائیل هم ۱۹
له تا سره دَ فلستیانو په لاس ورکړي او صبا به ته او ستا ځامن له
ما سره يئ او خداوند به دَ اسرائیل لښکر هم دَ فلستیانو په لاس
ورکړي ۲۰ نو شاؤل بیړه وکړه او اوږد زمکې ته پریوت او دَ سموایل ۲۰
له خبرې ډیر وویریده او هم په کښې قوّت نه وه ځکه چه ده ټوله
ورځ او شپه ډوډيِ خوړلې نه وه ۲۱ بیا هغه ښځه شاؤل ته ورغله ۲۱
او دې ولیده چه هغه ډیر ویریده او دې ورته وویل گوره چه ستا
وینځې ستا آواز واوریده او ما خپل ځان په خپل ورغوي کښې کیښود
او ستا خبره چه دِ کوله وامِ وریدله ۲۲ او اوس ته هم دَ خپلې وینځې ۲۲
آواز واوره او زه به ستا دَ وړاندِ دَ ډوډيِ ټکره کیږدم او ته ئې وخوره
چه ته په لارې ځې نو په تا کښې به قوت وشي ۲۳ او هغه انکار وکړ ۲۳
وئې ویل نه ئې خورم او دَ هغه نوکرانو او هغې ښځې هم په ده تاکید
وکړ او ده دَ هغو آواز واوریده او دَي له زمکې نه پورته شه او په
کټ کښیناست ۲۴ او هغې ښځې په کور کښې یو څورب سخوندر لاره ۲۴
نو هغې تلوار وکړ او هغه ئې حلال کړ او اوړه ئې واخستل او وا ئې
غوړل او پطیره ئې پخه کړه ۲۵ بیائې دَ شاؤل دَ وړاندِ او دده دنوکرانو ۲۵
د وړاند پیش کړل او هغوي وخوړل او بیا پورته شول او په هغې شپې کښې لاړل

# نه ویشتم باب

۱ او فلستیانو ټولې لښکرې خپلې افیق ته جمع کړلې او اسرائیلیان په ۱
هغې چینې چه په یزرعیل کښې وه ډیره کیدل ۲ او دَ فلستیانو سرکوډ ۲

په سلګونو او په زرګونو پورې وتل او داؤد او دَده سړي له اکیش
۳ سره په ورستو پورې وتل ۳ نو دَ فلستیانو سردارانو وویل چه
دَ عبرانیانو څه دي او اکیش فلستیانو ته وویل چه دا داؤد بنده
دَ شاؤل بادشاه دَ اسرائیل نه دئ څه؟ هغه چه له ما سره په دې
ورځو او په دې کالونو کښې وه او ما په ده کښې دَده دَ راتلو له ورځې
۴ نه تر دې ورځې پورې هیڅ شئ موندلې نه دي ۴ لیکن دَ فلستیانو
سرداران په هغه غصه شول او هغه ته دَ فلستیانو سردارانو
وویل چه دا سړې وګرزوه چه دې هغه ځاي ته چه تا ورته مقرر
کړې دئ وګرزي او له مونږ سره دِ جنګ ته کوز نه شي او مونږ
له دِ په جنګ کښې دښمن نه وي په څه کښې به دې خپل ځان
په خپل خاوند رضا کړي دَدې سړیو په سرونو سره به نه وي څه
۵ ۵ دا هغه داؤد نه دئ چه ده له په ګډېدلو کښې یو له بل سره
سندرې ویلې وئ ویل
چه شاؤل په زرګونو وهل ‖ او داؤد په لاکونو وهل
۶ ۶ نو اکیش داؤد راوباله ورته ئې وویل یهوه حي وي چه ته
راستمند یې او ستا وتنه او ستا ننه وتنه له ما سره په لښکر کښې
خما په سترګو کښې ښه دَه ځکه چه ما په تا کښې هیڅ شرارت له
ورځې دَ راتلو ستا و ما ته تر نن ورځې پورې موندلې نه دي لیکن
۷ دَ سرکرده ؤ په سترګو کښې ته ښه نه یې ۷ او اوس وګرزه او په
سلامتیا سره ورځه او دَ فلستیانو دَ سرکرده ؤ په سترګو کښې
۸ بد مه کوه ۸ نو داؤد اکیش ته وویل چه ما څه کړي دِي او تا
په خپل بنده کښې څه موندلي دِي له هغې ورځې چه زه ستا دَ
وړاندِ ترېدلم تر نن ورځې پورې تاچه راته شم او دَ خپل
۹ خاوند بادشاه له دښمنانو سره جنګ و نه کړم؟ ۹ نو اکیش ځواب
ورکړ او داؤد ته ئې وویل زه پوه شوم چه ته خما په سترګو کښې دَ

الله دَ نُورشني په شان نيک يي بي له دي چه دَ فلستيانو سردارانو
۱۰ ويلي دِي چه له مونږ سره دِ جنگ ته نه خيژِي ۱۰ او اوس په صُبا
کښ سحر وقتي پورته شه ستا دَ خاوند دَ نوکرانو سره چه له تا سره
راغلي دِي او چه تاسو په صبا کښ سحر وقتي پورته شئ اوچه په
۱۱ تاسو رڼا شي نو دروميږ ۱۱ او داؤد سحر وقتي پورته شه او سړي ئي
نا چه صبا لاړ شي او دَ فلستيانو زمکي ته وجاروزي او فلستيان يزرعيل
ته وختل *

# ديرشم باب

۱ ۱ او داسي وشوه چه داؤد او دَده سړي څقلغ ته په دريمي ورځي ورغلل
نو عماليقيانو په جنوب او په څقلغ داړه کړي وه او څقلغ ئي وهلي
۲ وه او په اور ئي سوي وه ۲ او هغه ښځي چه په کښ وي وړوکي او
لوي ئي په بند بيولي وُو هيڅ سړي ئي وژلی نه وه ليکن بو ئي تلل او
۳ په خپل لاري لاړل ۳ او چه داؤد اودَده سړي ښهرته ننوتل نو گوره
چه هغه په اور سوي وه او دَ هغو ښځي اوخاوندان ئي او لونړه ئي په بند
۴ بيولي شوي وُو ۴ نو داؤد او هغه خلق چه ورسره وه خپل آوازونه
ئي پورته کړل او و ئي ژړل خو چه دَ ژړلو توت ورته پاتي نه شه
۵ ۵ او دواړه ښځي دَ داؤد اخينوعم يزرعيلي او ابيجايل ښځه دَ نابال
۶ کرملي په بند بيولی شوي وي ۶ او داؤد ډير په تنګ شه ځکه
چه خلقو دَده په سنګسارولو وويل ځکه چه دَ ټولو خلقو ځانونه
تارخه وُو هر يو په خپلو ځامنو او په خپلو لونړو ليکن داؤد په
خپل خداوند الله ځان ټينګ کړ
۷ ۷ بيا داؤد ابياتر کوهين دَ اخيملک ځوي ته وويل چه افود
۸ مانه راوړه کښته ئي او ابياتر داؤد ته افود ورووړه ۸ نو داؤد له خداوند سوال
وکړ و ئي ويل چه که زه په دي داړي پسي وزغلم نو ور و به رسيږم
څه؟ او هغه ته ئي وويل چه ورپسي زغله ځکه چه ته به په يقين سره

۹ ور و رسيږي او نه خلاصولو به ئي خلاص کړي ۹ نو داؤد او هغه شپږ سوه
سړي چه ورسره وُو لاړل او دَ بسور کندي ته ورغلل او هغوي چه ورستو
۱۰ پاتي وُو ودريدل ۱۰ ليکن داؤد ورپسي زغليدهٔ دي او هغه څلور سوه سړي
او دوه سوه سړي ودريدل څکه چه هغوي داسي ستړي شول چه دَ بسور
۱۱ له کندي پوري وتلي نه شول ۱۱ او هغوي يو مصري سړي په پټي کښ وموند
او هغه ئي داؤد ته ورورست او ډوډئ ئي ورکړه او هغه وخوړه او اوبو ئي
۱۲ پرې وڅښکلي ۱۲ او دَ انځيرو دبلي ئي ورکړه او دوه خوشي دَ مويزانو او چه
ده وخوړل نو روح ئي ور وګرزيده څکه چه ده ډوډئ خوړلي نه وه او نه
ئي اوبه څښکلي وي په دريو ورځو او په دريو شپو کښ
۱۳ ۱۳ او داؤد هغه ته ووئيل چه ته څوک يي او دَ کوم ځاي يي او هغه ووئيل
زه مصري ځوان يم دَ عماليقي سړي غلام او زه خپل خاوند پريښودم څکه
۱۴ چه له دريو ورځو رنځور شوم ۱۴ او مونږ په جنوبي دَ کريتيانو داړه وکړه او
په هغه چه دَ يهودا وه او په جنوبي دَ کاليب او صقلغ سو په اور
۱۵ سوزاوه ۱۵ نو داؤد هغه ته ووئيل چه ته به مِ هغه داړي ته ورکوز
کړي څه ؟ او هغه ووئيل چه ته ما ته په الله قسم وکړه چه ته به مِ
نه وژني او نه به مِ دَ خپل خاوند لاس ته ورکوي نو زه به دِ هغي
۱۶ داړي ته ورکوز کړم ۱۶ او چه ده ورکوز کړ نو کوره چه هغوي په مخ دَ
ټولي زمکي خواره واره وه خوړونکي او څښکونکي او ګډېدونکي په سبب
دَ هغه ټول لوي لوټ چه دَ فلستيانو له زمکي او دَ يهودا له زمکي ئي
۱۷ وړي وه ۱۷ او داؤد هغوي له نماښام دَ بلي ورځي تر بېګاه پوري ووهل
او يو سړي ورنه خلاص نه شه بي له هغو څلورو سوو ځوانانو چه په
۱۸ اوښانو سواره وُو او وتښتيدل ۱۸ او داؤد هر هغه څه چه عماليقيانو
۱۹ اخستلي وُو خلاص کړل او داؤد دواړه ښځي خپلي خلاصي کړي ۱۹ او
دَ دوي يو شئ ورک نه شه نه وړوکي او نه لوي نه ځامن نه لونړه
او نه لوټ او نه هيڅ شئ هغو ټولو چه دوي لړل وا ئي خستل داؤد

تول را وګرزول ٢٠ او داؤد ټولي ميږي او غوايان واخستل او ډغه ئې ٢٠
دَ دغو مويشيو دَ وړاندِ بيول ويل ئې چه دا دَ داؤد لوټ دئ ٢١ او داؤد ٢١
هغو دوه سوه سړيو ته ورغي چه دَ داؤد دَ ورپسي تللو سترِي شوِي
وُو چه هغوي ئې دَ بسور په کندي کښينولي شوِي وُو او هغوي دَ داؤد
ملاقات ته ووتل او دَ هغو خلقو ملاقات ته چه ورسره وُو او داؤد
هغه قوم ته وړاندِ شه او دَ هغو دَ سلامتيا پوښتنه ئې وکړه ٢٢ نو ټولو ٢٢
دَ شرارت سړو او دَ بليعال سړو چه له داؤد سره تللي وُو ځواب ورکړ
وئې ويل دې دَ پارَ چه دوئ زمونږ سره لا نه ړل مونږ به له هغه
لوټ نه چه خلاص کړي مو دئ ور نه کړو مګر هر سړي ته دَ هغه
ښځه او دَ هغهِ ځامن او هغوي دِ واخلي او لاړ دِ شي ٢٣ نو داؤد ٢٣
وويل تاسو به داسي ونه کړئِ اي ځما ورونړو ځکه چه خداوند مونږ
ته راکړل او وئې ساتلو او هغه داړه چه په مونږ راغله ځمونږ په
لاس ئې راکړه ٢٤ او ستاسي به څوک په دې خبري کښ واوري ځکه ٢٤
لکه دَ هغه برخه چه جنګ ته راکوزيږي هسي به وِي دَ هغه برخه چه
اسباب ښځه ودريږي او دوي به په برابرئِ سره برخه ووېشي ٢٥ او له ٢٥
هغي ورځي نه او په وړاندِ داسي وشول چه هغه ئې حق او انصاف دَ
اسرائيل دَ پارَ مقرّر کړ تر دې ورځي پوري ٢٦ او چه داؤد ځقلاغ ته ورغي ٢٦
نو له لوټ نه ئې دَ يهودا سپين ږيريو ته خپلو دوستانو ته واستول
وئې ويل ګوره تاسو ته دَ خداوند دَ دښمنانو له لوټ نه برکت دئ ۰
٢٧ هغو ته چه په بيت ايل کښ وو او هغو ته چه په جنوبي راموت کښ ٢٧
وو او هغوي ته چه په يتّير کښ وو ٢٨ او هغو ته چه په عروعير کښ وو ٢٨
او هغو ته چه په سيموت کښ وو او هغو ته چه په اشتموع کښ وو
٢٩ او هغو ته چه په راکال کښ وو او هغو ته چه د يرحميليانو په ښهرونو ٢٩
کښ وو او هغو ته چه د کينيانو په ښهرونو کښ وو ٣٠ او هغو ته چه په ٣٠
حورمه

حورمه کښې وو او هغوته چه په کورعشان کښې وو او هغوته چه په عتاک
٣١ کښې وو ٣١ او هغوته چه په حبرون کښې وو تر هغو ټولو ځايونو پورې چه
داؤد او دده سړي په کښې گرزيدلي وو ٭

# يو ديرشم باب

١ ١ او فلستيانو له اسرائيل سره جنګ وکړ او د اسرائيل سړي د فلستيانو
٢ له مخه وتښتيدل او د جبعې په غره کښې وژلي شوي پريوتل ٢ او فلستيان
په شاؤل او دده په ځامنو پسې ونښتل او فلستيانو يونتن او ابنياداب
٣ او ملکيشوع ځامن د شاؤل ووهل ٣ او جنګ په شاؤل دروند شه
او په دده لِنده وشتونکي سړي راغلل او له وشتونکو نه ډير ژوبل شه
٤ ٤ نو شاؤل خپل وسلې پورته کونکي ته وويل خپله توره دِ وباسه او
پر مِ پيوده هسې نه چه هغه نامختون راشي او ومِ پيودي او خراب مِ
کړي او د هغه د وسلې پورته کونکي ونه غوښتل ځکه چه هغه ډير ويريده
٥ نو شاؤل هغه توره ونيوه او پرِ ور پريوت ٥ او چه دده د وسلې پورته
کونکي وليدل چه شاؤل مړ شه نو هغه هم په خپلي تورې ور پريوت
٦ او ورسره مړ شه ٦ او شاؤل او دده درې ځامن او دده وسله پورته
٧ کونکي او ټول سړي دده په دغې ورځې کښې مړه شول ٧ او چه د
اسرائيل سړيو وليدل هغوي چه د خوړ په پورې غاړه وو او هغوي چه
د يردن په پوره غاړه وو چه د اسرائيل سړي وتښتيدل او چه شاؤل
او دده ځامن مړه شول نو ښهرونه ئې پريښودل او وتښتيدل او
فلستيان راغلل او په کښې واوسيدل
٨ ٨ او په صبا کښې چه فلستيان ورغلل چه وژلي شوي برمنډ
کړي نو شاؤل او د هغه درې ځامن ئې د جلبوع په غره کښې پراته
٩ وموندل ٩ نو دوي د هغه سر پريکړ او وسله ئې وکښله او د
فلستيانو زمکې ته ئې واستول چار چاپيره د يارَ د زيرې کولو د دوي
١٠ د بتانو په کور کښې او په خلقو کښې ١٠ او دده وسله ئې د عشتاروت

په کور کښې کېښودله او دَده مړي ئې دَ بیت‌شان په دیوال تِک
۱۱ واهه ۱۱ او چه دَ یابیشِ جلعاد او سیدونکو هغه چه فلستیانو
۱۲ په شاؤل کړي وُو واوریدل ۱۲ نو ټول توّتناک سړي پورته شول
او ټوله شپه لاړل او دَ شاؤل مړي او دَده دَ ځامنو مړي ئې
دَ بیت‌شان له دیوال نه واخستل او یابیش ته ئې راوړل
۱۳ او هلته کښې ئې وسیځل ۱۳ او دَده هډوکي ئې واخستل او
په یابیش کښې ئې ترغوره دَلاندِ ښخ کړل او اوو ورځي ئې
روژي ونیولي *

# دويم سموايل

## اول باب

آ او پس له مرګه دَ شاؤل نه او له واګرزيدلو دَ داؤد نه له ١
وهني دَ عماليق نه داسي وشول چه داؤد په صقلغ کښ دوه ورځي
مقيم شه ٢ او په دريمه ورځ داسي وشوه چه ګوره يو سړي دَ لښکرګاه ٢
نه له شاؤل نه راغي او جامي ئي شليدلي او په سر ئي خاوري وي او
داسي وشول چه داؤد ته راغي نو زمکي ته تيټ شه او سجده ئي
وکړه ٣ او داؤد ورته وويل چه له کومه راغلي هغه ورته وويل چه ٣
دَ اسرائيل له لښکرګاه نه راخلاص شوي يم ٤ نو داؤد ورته وويل ٤
چه څرنګ حال وه خبر م کړه هغه وويل چه قوم له جنګ ولښتيده
او له قوم نه هم ډير پريوتل او مړه شول او شاؤل او دَده زوي يونتن
هم مړه شول ٥ نو داؤد هغه ځوان ته چه دَي ئي خبر کړ وويل چه ٥
تا څرنګ وپيژاندل چه شاؤل او دَده ځوي يونتن مړه شول ٦ او هغه ٦
ځوان چه دَي ئي خبر کړ و ئي ويل چه زه اتفاقًا دَ جلبوع په غره
کښ پيښ شوم او ګوره چه شاؤل په نيزي خپلي تکيه کړي وَه
او ګوره چه ګاډي او سواره سخت په ده پسي شوي وُو ٧ نو ده په ورستو ٧
وکتل او زه ئي وليدلم او و ئي بللم ما وويل ګوره زه يم ٨ نو ده ٨
راته وويل چه ته څوک يي ما ورته وُوِ زه عماليقي يم ٩ نو ده راته ٩
وويل چه راباندِ ودريږه او و مِ وژنه چه تنګحالئ زه نيولي يم ځکه
چه اوس خو ځما ټوله ساه په ما کښ دَه ١٠ نو زه پرِ ودريدم او ومِ واژه ١٠
ځکه چه زه وپوهيدم چه دَده په پريوتلو پسي ژوندي به پاتي نه شي
او دَده تاج چه په سر ئي وه وا مِ خست او بازوبند چه په بازو ئي وه
او هغه مِ خپل خاوند ته راوړي دِي ١١ نو داؤد خپلي جامي ونيوي ١١

۱۲ او څيرې ئې کړې او داسې ټولو سړو چه ورسره وُو ۲ او دوي ټټر
وهل او وئې ژړل او تر ماښامَ پورې ئې روژه ونيوه په شاؤل او
دَده په زوي يونتن او په اُمّت دَ خداوند او په کور دَ اسرائيل څکه
۱۳ چه دوي په توري پريوتلي وُو ۱۳ او داؤد هغه ځوان ته وويل چه
دې ئې خبر کړ چه ته دَ کوم ځاي يې هغه وُوِ چه زه زوي دَ يوه
۱۴ مسافر عماليقي سړي يم ۱۴ او داؤد ورته وُوِ څرنګ نه ويريدې چه
۱۵ تا لاس اوږد کړ تا چه دَ خداوند مسيح هلاک کړې ۱۵ بيا داؤد يو له
ځوانانو را وباله او وئې ويل چه ورشه او پرې ولګيږه نو هغه ئې ووهه
۱۶ او مړ شه ۱۶ او داؤد ورته وويل چه ستا وينې ستا په سرِې چه
ستا خولې په تا شاهدِي وکړه و دِ ويل چه ما مسيح دَ خداوند
قتل کړ
۱۷ ۱۷ او داؤد په شاؤل او دَده په زوي يونتن باندِ ئې په دې وِير
۱۸ سره وِير وکړ ۱۸ او وئې ويل چه دَ يهودا زامنو ته دِ دَ ليندې شعر
زده کړِي ګوره دغه دَ ياشر په کتاب کښې ليکلي دِي

۱۹ هغه ښوسئِ اي اسرائيلَ ستا
په لوړو و وژلي شوه
څرنګ جبّاران پريوتل
۲۰ په جتّه کښې خبر مه کوئِ
دَ اشقلون په بازارونو کښې زيري
مه کوئِ
هسې نه چه دَ فلسطيانو لوڼه
خوښي وکړِي
هسې نه چه دَ نامختونو لوڼه ښخ
وکړِي
۲۱ اي دَ جلبوعَ غرونو په تاسو دِ شبنم
او باران نه وِي او نه پټي دَ هديو وِي
څکه چه هلته ډال دَ جبّارانو
غورزولِي شوِي دِي
ډال دَ شاؤل نا غوړ کړي په
تيلو
۲۲ دَ وژلو له وينو او دَ جبارانو
له وازدو دَ يونتن ليندہ په ورستو
نه جارويستله
او توره دَ شاؤل خالِي نه ګرزيدله
۲۳ شاؤل او يونتن په خپل ژوندانه
کښې محبوبان او نعمت داران

وُو
او دَ هغو په مرګ کښې هم بيل
نه شول
تيز له عقابانو
او مضبوط له زمريو
۲۴ اي دَ اسرائيل لوڼو په هغه
شاؤل وژاړئ چه تاسو ته ئې
په لطافت سره قرمزي جامي
درواغوستولي
او سناسي جامي ئې دَ زرو په کاليو
آراسته کړي

۲۵ څرنګ جبّاران په مينځ دَ جنګ
کښې پريوتل
يونَتَن ستا په لوړو کښې وژلي
شوي دي
۲۶ اي يونَتَن څما وروره په تا
تنګحاله يم
ته ما ته ډير نعمت وې
ستا محبّت ما لره له محبّتَ دَ
ښځو ډير عجيبه وه
۲۷ څرنګ جبّاران پريوتل او وسلي دَ
جنګ ورکي شوي

# دويم باب

۱ آ او پس له دغه داسي وشول چه داؤد خداوند نه سوال وکړ وئې ويل
چه زه بوه له کليو دَ يهودا ته وخيژم نو خداوند ورته وويل وخيژه
۲ نو داؤد وويل چه کوم بره ته وخيژم ورته ئې وويل حبرون ته ۲ نو
داؤد هلته وروخوت او دَ ده دواړه ښځي هم اخنوعَم يزرعلي او ابيجايله
۳ ښځه دَ نابال کرملي ۳ او داؤد هغه سړي چه ورسره وُو او دَ هغه کور
۴ وخيژول او دَ حبرون په ښهرونو کښې اوسيدل ۴ او دَ يهودا سړي
راغلل او هلته ئې داؤد مسح کړ چه دَ يهودا په کور بادشاه وِي
او داؤد ئې خبر کړ وئې ويل چه سړي دَ يابيش جلعاد هغه
۵ دِي چه شاؤل ئې ښخ کړ ۵ نو داؤد استاځي دَ يابيش جلعاد سړيو ته
واستول او ورته ئې وويل چه تاسو دَ خداوند مبارک يئِ چه دا مهرباني
۶ مو په شاؤل خاوند خپل کړي دَه او ښخ کړې مو دي ۶ او اوس دِ
خداوند له تاسي سره مهرباني او حق وکړي او زه به هم له تاسي

سره دا نیکي وکړم څکه چه
۷ تاسي دا کار کړي دي ۷ نو اوس دِ ستاسو لاسونه مضبوط شِي او
مردانه شئِ څکه چه ستاسي خاوند شاؤل مړ شه او دَ یهودا کور
زه مسح کړي یم چه په دوي بادشاه شم
۸ ۸ نو ابنیر زوي دَ نیر سردار دَ لښکر دَ شاؤل اشبوشت
۹ زوي دَ شاؤل واخست او دي ئي محنائم ته پوري کړ ۹ او په جلعاد
او په اشوریانو او په یزرعیل او په افرایم او په بنیامین او په ټول
۱۰ اسرائیل ئي بادشاه کړ ۱۰ او اشبوشت زوي دَ شاؤل چه په اسرائیل بادشاه
شه دَ څلویښتو کالو وه او دوه کاله بادشاهي ئي وکړه لیکن دَ یهودا
۱۱ کور په داؤد پسي شه ۱۱ او هغه دَ ورځو شمار چه داؤد په حبرون
۱۲ کښ دَ یهودا په کور بادشاهي وکړه اوه کاله شپږ میاشتي وي ۱۲ او
ابنیر زوی دَ نیر او مریونه دَ اشبوشت زوي دَ شاؤل له محنائم نه
۱۳ جبعون ته ووتل ۱۳ او یواب زوي دَ څرویه او مریونه دَ داؤد ووتل او
دَ جبعون په تالاؤ یوځاي ورته ملیا شول او دغه دَ تالاؤ په دي
۱۴ لوري او هغوي دَ تالاؤ په هغه لوري کښیناستل ۱۴ نو ابنیر یواب ته
وویل چه څوانان دِ پورته شي چه څمونږ دَ وړاندِ ولوبیږي نو یواب
۱۵ وُوِ پورته دِ شِي ۱۵ نو هغوي پورته شول او دَ بنیامین او دَ اشبوشت
زوي دَ شاؤل له طرف نه په شمار سره دولس څوانان ورپوری وتل
۱۶ او دولس دَ داؤد له مریونو نه ۱۶ او هر یوه دَ خپل ملګري سر ونیوه
او توره ئي دَ خپل ملګري په اړخ کښ ووهله او ټول یوځاي پریوتل
نو دغه ځاي حلقت‌هصوریم و بللي شه هغه چه په جبعون کښ دي -
۱۷ ۱۷ او په دغي ورځي کښ بيحده سخت جنګ وه او ابنیر او سړي
۱۸ دَ اسرائیل دَ داؤد دَ مریونو دَ وړاندِ مات شول ۱۸ او هلته دَ څرویه
دري زامن وُو یواب او ابشَي او عسائیل او عسائیل دَ یوي دَ ورشو
۱۹ دَ هوسئِ په شان ئي تیزي پښي لرلي ۱۹ نو عسائیل په ابنیر پسي زغلیده

او په تللو کښې په ښي او کيڼ طرف دَ ابنير له پسې کيدلو نه نه گرزيده
۲۰ ۲۰ نو ابنير په ورستو وکتل او وئي ويل ته عسائيل يې څه؟ ده وويل
۲۱ زه هغه يم ۲۱ نو ابنير ورته وويل چه په خپل ښي يا کيڼ اړخ وگرزه
او يو له ځوانانو نه ونيسه او دَ ځان دَپاره لوټ تري واخله او
۲۲ عسائيل خوښه نه کړه چه دَده له ورستو وگرزي ۲۲ بيا ابنير جواب ورکړ
او عسائيل ته ئي وويل چه له ورستو مې وگرزه ولي به دِ په زمکي
۲۳ وولم نو څه رنگ به مخ خپل ستا ورور يوآب ته پورته کړم ۲۳ نو
هغه له گرزيدلو انکار وکړ نو ابنير له ورستي سيل دَ نيزي په کيډي
کښې وواهه او نيزه ئي له ورستو ووتله نو هلته پريوت او په هغه
ځاي مړ شه او داسي وشوه چه ټول چه په هغه ځاي راغلل چه
۲۴ عسائيل په کښې پريوتلي او مړ وَه و به دريده ۲۴ او يوآب او ابيشاي
په ابنير پسي زغليدل او چه دوي دَ آمه غره ته چه په لاري دَ
۲۵ بيابان دَ جبعون کښې مقابل دَ جيح دي راغلل نمر ډوب شه ۲۵ نو دَ
بنيامين زامن په ابنير پسي خپل ځانونه راټول کړل او يو ټولي شه
۲۶ او دَ يوي غونډيِ په سر ودريدل ۲۶ نو ابنير يوآب ته ناري کړي
او وئي ويل چه گنړه تر ابده به توره خوري گنړه ته نه پوهيږي چه
په آخر کښې به ترېخوالي وِي او تر څو پوري به ته اُمت ته نه وايي چه
۲۷ دَ خپلو ورونړو له ورستو کيدلو نه را وگرزويِ ۲۷ نو يوآب وويل
چه هغه الله حيَ دَي چه که تا ويلي نه وي نو اُمت به په
۲۸ صباح هر يو دَ خپل ورور له ورپسي کيدلو نه راگرزيده ۲۸ نو
يوآب تورنگ وواهه نو ټول اُمت ودريده او پس له هغه په
۲۹ اسرائيل پسي ونه زغليدل او نه جنگ ته زياتيدل ۲۹ نو ابنير او
دَده سړي دغه ټوله شپه په عراباه کښې تلل او له اردن پوري وتل
۳۰ او په ټول بترون کښې تلل او محنايم ته راغلل ۳۰ او يوآب دَ ابنير له
ورپسي کيدلو نه را وجاروت او چه ټول قوم ئي راټول کړ نو دَ

٣١ داؤد له مريونو نولس سړي او عسائيل ورک شول ٣١ او مريونو دَ
داؤد دَ بنيامين او دَ ابنير په سړيو ووهل او دري سوه شپيته
٣٢ سړي مړه شول ٣٢ او هغوي عسائيل واخست او دَده دَ پلار په قبر
کښ په بيتلحم کښ ئې ښخ کړ او يواب او دَده سړي ټوله شپه تلل
او په حبرون کښ پري صباح شه *

# دريم باب

١ ١ او دَ شاؤل دَ کور او دَ داؤد دَ کور په مينځ کښ اوږد جنګ وه او
داؤد به مضبوط کيده او دَ شاؤل کور به ضعيف کيده
٢ ٢ او داؤد ته په حبرون کښ زامن وزيږيدل او مشرئي امنون
٣ له اخينوعمي يزرعيلي نه ٣ او دويم کيلاب له ابيجايلي ښځي دَ نابال
کرملي او دريم ابشالوم زوي دَ معکه چه لور دَ تلمي بادشاه دَ جشور
٤ وه ٤ څلورم ادونيا زوي دَ حجيت او پنځم دَ شفطيا زوي دَ ابيطال
٥ ٥ او شپږم يثرعام له عجله ښځه دَ داؤد دغه داؤد لره په حبرون
٦ کښ وزيږيدل ٦ او چه دَ شاؤل دَ کور او دَ داؤد دَ کور په مينځ کښ
جنګ کيده نو داسي وشول چه ابنير دَ شاؤل په کور کښ ځان
٧ مضبوط کړ ٧ او دَ شاؤل يوه سريته وه رصفا نوم ئې وه لور دَ آياه
نو اشبوشت ابنير ته وويل چه ته ولي ځما دَ پلار سريتي ته ورننوتلي
٨ ٨ نو ابنير دَ اشبوشت له خبري ډير په غصّه شه وئې ويل چه باري
زه دَ يهوداه دَ پاره دَ سپي سر يم څه؟ نن ورځ ستا دَ پلار شاؤل له
کور سره او دَده دَ وروڼو او دَده له دوستانو سره مهرباني کوم او
ته مې دَ داؤد لاس ته ونه سپارلي چه ته نن ورځ دَ هغي ښځي ګناه
٩ را باندي طلب کوي ٩ الله دې له ابنير سره همسي وکړي او له دي نه دې
زيات وکړي که زه لکه خداوند له داؤد سره قسم وکړ همسي ورسره ونه کړم
١٠ ١٠ دَ پاره دَ بدلولو دَ بادشاهئ له کوره دَ شاؤل او دَ پاره دَ ودرولو دَ

کرسيِ دَ داؤد په اسرائيل او په يهوداَ له داَنَ تر بيرسبعَ پوري
۱۱ او ده ابنير ته بيا دَ يوي خبري ځواب دَده دَ ويري په سبب ورکولي ۱۱
نه شه ۱۲ نو ابنير استاځي داؤد ته دَده وځاي ته واستاوه و يُ ۱۲
ويل چه زمکه دَ چا ده ته راسره عهد وکړه او ګوره زما لاس له
تا سره دي تا چه ټول اسرائيل و تا ته در وجاروباسم ۱۳ نو هغه وُوِ ۱۳
ښه ده زه به عهد درسره وکړم مګر زه له تا نه يوه خبره غواړم وايم
چه ته به تر هغه پوري زما مخ ونه ويني څو چه وړمبيءِ ميکل لُور دَ
شاؤل رانه ولي هرکله چه ته راشي چه زما مخ ووينې ۱۴ او داؤد اشبوشث ۱۴
زوي دَ شاؤل ته استاځي واستول و يُ ويل چه زما ښځه ميکل چه
دَ فلستيانو په سلو څونيو سره مِ کوژدنَ کړي دَه راٸي کړه ۱۵ نو اشبوشث ۱۵
واستاوه او هغه يُ دَدې له سړي فلطئيل بنِ لايش نه را ونيوله ۱۶ او ۱۶
دَ هغې سړيَ ورسره ته او چه ته نو ورپسي يُ ژړل تر بحوريمَ پوري
نو ابنير ورته وُوِ ورځه وګرزه او هغه وګرزيده
۱۷ او ابنير دَ سپين ږيرو دَ اسرائيل سره خبره وکړه و يُ ويل ۱۷
چه تاسو څو لا پروړ او بن غوښتل چه داؤد په تاسي بادشاه شي -
۱۸ نو اوس وکړيءِ ځکه چه خداوند له داؤد سره خبره کړي دَه وايي ۱۸
چه زه به دَ خپل بنده داؤد په لاس خپل اُمّت اسرائيل دَ فلسطيانو
له لاس نه او دَدوي دَ ټولو دُښمنانو له لاس نه خلاص کړم ۱۹ او ۱۹
ابنير دَ بنيامين په غوږونو کښ هم خبري وکړي او ابنير هم لاړ شه
تا چه دَ داؤد په غوږونو کښ خبري وکړي هر څه چه ښه وِي په
سترګو دَ اسرائيل او په سترګو دَ ټول کور دَ بنيامين کښ ۲۰ نو ابنير ۲۰
داؤد ته په حبرون کښ ورغي او له ده سره شل سړي وُو نو داؤد
ابنير او دَده سړو ته چه ورسره وو ميلمستيا تياره کړه ۲۱ او ابنير ۲۱
داؤد ته وويل چه زه به پورته شم او لاړ به شم او زما خاوند
بادشاه ته به ټول اسرائيل راټول کړم او دوي به له تا سره عهد

وکړي او په ټول خه چه ستا خان غواړي به بادشاهي وکړي نو داؤد
۲۲ ابنیر واستاوه او په سلامتیٔ سره روان شه ۲۲ او کوره چه مریونه
دَ داؤد او یوآب له داړي نه راتله او ډیر لوټ ئي ورسره راوړ او
ابنیر له داؤد سره په حبرون کښ نه وه ځکه چه دئ ئي واستاوه او
۲۳ په سلامتیٔ سره روان شه ۲۳ او یوآب او ټول لښکر دَده چه
ورسره وه راغي نو یوآب ئي خبر کړ و ئي ویل چه ابنیر زوي دَ نیر
بادشاه ته راغي او ده واستاوه او هغه په سلامتیٔ سره روان شه
۲۴ ۲۴ نو یوآب بادشاه ته راغي او و ئي ویل چه خه دِ وکړل؟ ګوره ابنیر
۲۵ درته راغي ولي دِ واستاوه چه په تللو لاړ شي ۲۵ ته خو ابنیر زوي دَ نیر
پیژنې چه ستا غولولو ته راغي او چه ستا وتنه او ننه وتنه معلومه
۲۶ کړي او هرڅه چه ته کوي، معلوم کړي ۲۶ نو یوآب له داؤد نه راووت
او استاځي ئي په ابنیر پسي واستول دَ صیره له کوهي نه ئي راستون
۲۷ کړ او داؤد خبر نه وه ۲۷ او چه ابنیر حبرون ته را وجاړت نو یوآب
دَدروازي په مینځ کښ هغه واخست چه پټه خبره ورسره وکړي او
هلته ئي په ګېډه کښ وواهه او مړ شه په بدل دَ وینو دَ عسائیل
ورور دَده

۲۸ ۲۸ پس له دغه نه داؤد واوریدل او و ئي ویل چه زه او زما
بادشاهي تر ابده پوري دَ خداوند دَ وړاندي پاک یُو دَ ابنیر ځوي
۲۹ دَ نیر له وینو نه ۲۹ په سر دَ یوآب او دَده دَ پلار په ټول کور دِ
وویشتلي شي او دَ یوآب له کور نه دِ جریان وال او کوړیان یا په تاپوړه
نیونکي او پریوتلي په توري او محتاج دَ ډوډیٔ هیڅري پري نه کړي شي
۳۰ ۳۰ نو یوآب او دَده ورور ابیشاي ابنیر وواژه ځکه چه ده په جبعون
کښ په جنګ کښ دَدوي ورور وژلي وه۔

۳۱ ۳۱ او داؤد یوآب ته او هغه ټول اُمّت ته چه ورسره وه
وُوِ چه خپلي جامي څیري کړئ شړئ به ملا وتړئ او دَ ابنیر دَ وړاندِ

نمر ووهيِ او دا داؤد بادشاه دَ تابوت په ورستو ته ۳۲ او ۳۲
ابنير لي په حبرون کښ ښخ کر او بادشاه آواز پورته کړ او دَابنير
په قبر ئي وژړل او ټول اُمّت وژړل ۳۳ او بادشاه په ابنير وير ۳۳
وکړ او وئي ويل چه
لکه مړ کيږي احمق ابنير هسي مړ شه څه؟
۳۴ ستا لاسونه بند شوي نه وُو ۳۴
ستا پښي په ځولانو نيولي شوي نه وي
لکه پريوتونکي دَ بديُ دَ زامنو دَ وړاندِ
هسي پريوتلي ته
او بيا ټول قوم پرِ وژړل ۳۵ او ټول اُمّت راغي تا چه په داؤد ډوډيُ ۳۵
وخورِي او لا تر اوسَ پوري ورځ وه نو داؤد قسم وکړ وئي ويل
چه داسي دِ الله راسره وکړي او له دينه زيات که زه دَ نمر له
ډوبيدلو نه وړاندِ ډوډيُ ياڅه بل شي وڅه کم ۳۶ نو ټول اُمّت نکاه ۳۶
کوله او دَدوي په سترګو کښ ښه وه لکه هر هغه څه چه بادشاه
به کول دَ ټول اُمّت په سترګو کښ به ښه وُو ۳۷ او په دغي ورځي ۳۷
کښ ټول اُمّت او ټول اسرائيل معلوم کړ چه له بادشاه نه ابنير زوي
دَ نير قتل شوي نه دي ۳۸ او بادشاه خپلو مريونو ته وُوِ چه تاسي ۳۸
نه پوهيږِي چه نن ورځ په اسرائيل کښ يو رئيس او بزرګ پريوت
۳۹ او زه نن ورځ ضعيف او ممسوح بادشاه يم او دغه سړي زامن ۳۹
دَ ځرويه له ما نه زيات سخت دِي شرارت کونکي ته دِ خداوند
دَ هغه دَ شرارت په شان بدله ورکړي ✣

# څلورم باب

۱ او چه دَ شاؤل زوي واوريدل چه ابنير په حبرون کښ مړ ۱
شه نو لاسونه ئي سُست شول او ټول اسرائيل ولړزيده ۲ او دَ ۲

شاؤل دَ زوي دوه سړي سرداران دَ داړو وُو دَ يوه نوم بعنه
او دَ بل نوم رکاب زامن دَ رمّون دَ هغي بيئروتي له بني بنيامين
۲ څکه چه بيئروت هم له بنيامين سره کړلي شوي دي ۳ او بيروتيان
جتيم ته تښتيدلي وُو او تر دي ورځي پوري هلته مسافران وُو
۴ ۴ او دَ يونتن دَ زوي دَ شاؤل يو ګډ زوي وه او هغه وقت چه
دَ شاؤل او دَ يونتن خبر له يزرعيل نه راغي دَ پنځو کالو وه نو
داي واخست او تښتيدله او چه په تښتيدلو کښ ئي بيړه وکړه
۵ نو دي پريوت او ګډ شه او نوم ئي مفيبوشت وه ۵ او دَ رمون
بيروتي زامن رکاب او بعنه تلل او دَ ورځي په غارمي کښ دَ اشبوشت
۶ کورته راغلل او دَي دَ غرمي په خوب اوده وه ۶ نو مينځ دَ کور ته
راغلل چه غنم واخلي او په ګېډي کښ ئي وواهه او رکاب او بعنه
۷ ورور ئي و تښتيدل ۷ او چه دوي کور ته راغلل هغه په کټ
باندِ په خپل خوابګاه کښ ملاست وه او دوي وواهه او مړ ئي
۸ کړ او سرئي پريکړ واخست او دَ عراباه په لاري ټوله شپه تلل ۸ او دَ
اشبوشت سر ئي په حبرون کښ داؤد ته راوړ او بادشاه ته ئي
وويل ګوره سر دَ اشبوشت زوي ستا دَ دُښمن دَ زوي دَشاؤل هغه
چه ستا ځان ئي لټاوه او خداوند په دي ورځي کښ بادشاه ته
۹ بدل ورکړ له شاؤل نه او دَده له اولاد نه ۹ نو داؤد رکاب او
بعنه دَده ورور ته چه دَ رمون بيروتي زامن وُو ځواب ورکړ ورته
و ئي ويل چه يهوه حي دي چه ځان څما ئي له هري تنګي
۱۰ نه فديه کړي دَي ۱۰ هرکله چه يو زه خبر کړم و ئي ويل ګوره شاؤل
مړ شه او هغه لکه زيري ګونکي په خپلي سترګي کښ وه نو هغه
مِ ونيوه او په صقلاغ کښ مِ مړ کړ دا مِ ورکړ دَده دَ زيري دَپاره
۱۱ ۱۱ نو څومره زيات چه شريران سړي يو صادق سړي په خپل کور
کښ په خپلي بچاوني وژلي دي نو اوس به زه دَ هغه وينې

سناسو له لاسونو و نه غواړم څه ؟ او له زمکي به مو وکاږم يب نو ١٢
داؤد نوکرانو ته و فرمايل او هغوي ئي قتل کړل او لاسونه او پښي ئي
پريکړل او په حبرون کښ تالاؤ څنګه ئي ځوړند کړل او دَ اشبوشت
سرئي واخست او په حبرون کښ ئي دَ ابنير په قبر کښ ښخ کړه ÷

# پنځم باب

آ او ټولي فرقي دَ اسرائيل داؤد ته حبرون ته ورغلي او خبري ١
ئي وکړي و ئي ويل چه کوره سنا هډوکي او غوښه مونږ يُو ب او هم ٢
پرون او هم لا وړاندِ چه شاؤل په مونږ بادشاه وه تا به اسرائيل
ايستل او ننه ايستل او خداوند درته وويل چه ته به څما اُمّت
اسرائيل وڅروي او ته به په اسرائيل باندِ امير يي ج او ټول ٣
سپين ږيري دَ اسرائيل بادشاه ته حبرون ته ورغله او داؤد بادشاه
په حبرون کښ دَ خداوند دَ وړاندِ عهد ورسره وکړ او دوي داؤد
بادشاه په اسرائيل مسحه کړ د او چه داؤد بادشاه شه دَ ديرشو ٤
کالو وه او څلويښت کاله ئي بادشاهي وکړه ه په حبرون کښ په ٥
يهوداً باندِ ئي اوه کاله شپږ مياشتي بادشاهي وکړه او په اورشليم
کښ په ټول اسرائيل او يهوداً باندِ ئي دري ديرش کاله بادشاهي وکړه
و او بادشاه او دَ ده سړي اورشليم ته لاړل يبوسيانو ته چه اوسيدونکي ٦
دَ هغي زمکي وُو هغوي له داؤد سره خبره وکړه و ئي ويل چه ترڅو
پوري چه ته ړانده او ګډ لري نه کړي دلته به رانه نه وزي يعني
داؤد به دلته رانه نه وزي ز او داؤد دَ صيهون قلا و نيوه چه دَ ٧
داؤد ښهر دَي ح او په دغه ورځي کښ داؤد وويل چه هغه څوک ٨
چه يبوسيان ووهي او دَ کاريز ناليِ ته و رسيږي او ګډان او ړانده دي
چه دَ داؤد له ځانَ نفرتي دِي دَ دي دپارَ وايي چه ګډان او ړانده شته
به کور ته داخل نه شي ط او داؤد په قلا کښ اوسيده او هغه ٩

ئې دَ داؤد په ښهر نومړي کړ او داؤد دَ مِلو په ګرداګرد تلا او
١٠ دَ ننه بینا وکړه ١٠ او داؤد په تللو ته او لويده او دَ لښکرو خداوند
الله ورسره وه
١١ ١١ او حیرام بادشاه دَ صور داؤد ته ایلچیان واستول او دَ
لمنځو وني او دَ ونو کاریګر او دَ کاڼو دَ دیوال کاریګر او هغوي
١٢ داؤد له کور جوړ کړ ١٢ او داؤد پوه شه چه خداوند دې په
اسرائیل بادشاه ثابت کړ او چه دده بادشاهي ئې دَ خپل اُمّت
اسرائیل دَپارَ پورته کړه
١٣ ١٣ او داؤد له اورشلیم نه نوري سُریتي او ښځې واخستلې پس
له راتلو دَده له حبرونه او داؤد ته نور زامن او لوڼړه وزیږیدل
١٤ ١٤ او دَ هغو نومونه دا دِي چه ده ته په اورشلیم کښ زیږیدلي وُو
١٥ شموع او شوباب او ناثان او سلیمان ١٥ او ایبحار او الیشوع او
١٦ نافغ ١٦ او یافیع او لیشامع او الیاداع او الیفلط
١٧ ١٧ او چه فلسطیانو واوریدل چه دوي داؤد په اسرائیل
بادشاه مسح کړ نو ټول فلسطیان وختل چه داؤد ولټوي اوچه
١٨ داؤد واوریدل نوڅیودي ته ورکوز شه ١٨ او فلسطیان راغله او
١٩ دَ رفائیانو په خوړ کښ خواره شول ١٩ او داؤد خداوند ته سوال
وکړ و ئې ویل چه فلسطیانو ته وخیژم نه به ئې څما لاس ته
راکړي څه؟ نو خداوند داؤد ته وُوِ وخیژه زه به فلسطیان ستا
٢٠ په لاس کښ په درکولو درکړم ٢٠ نو داؤد بعل پراضیم ته ورغي او
هلته داؤد هغوي ووهل او و ئې ویل چه خداوند څما دُښمنان
څما دَ وړاندِ پرچول کړل لکه چه اوبو پرچولي دي دَپارَ نوم دَدغه
٢١ ځاي ئې بعل پراضیم و باله ٢١ او هلته هغوي خپل بُتان پریښودل
او داؤد او دَده سړو واخستل
٢٢ ٢٢ نو فلسطیان وختل او دَ رفائیانو په خوړ کښ خواره شول

٢٣ نو داؤد خداوند ته سوال وکړ هغه ورته ووې مه ورخيژه بلکه ٢٣
دَدوي له ورستو راوګرزه او دَ توت دَ ونو له برابرې
نه پرې راشه ٢٤ او چه دَ توت دَ ونو په سرونو کښې آواز دَ ٢٤
قدمونو واورې نو ځان بيدار کړه ځکه چه خداوند ستا دَ
وړاندِ وتلې دې دَپارَ دَ وهلو دَ لښکر دَ فلسطيانو ٢٥ نو داؤد هسې ٢٥
وکړل لکه چه خداوند ورته وفرمايل او فلسطيان ئې له جبع
نه دَ جازر تر ننه‌وتلو پورې ووهل ✢

# شپږم باب

١ او داؤد هم ټول چنده ځوانان په اسرائيل کښې ديرش زره ١
ټول کړل ٢ او داؤد او هغه ټول اُمت چه ورسره وه له بعله دَ ٢
يهوداه نه پاڅيدل تا چه له هغه ځاي نه صندوق دَ هغه الله
چه نوُم ئې بللې شوي په نوُم دَ خداوند دَ لښکرو راوړي چه په
کروبيم ناست دې ٣ نو دوي صندوق دَ الله په نوي ګاډي کيښوده ٣
او دَ ابيناداب له کور نه ئې واخست هغه چه په جبعه کښې وه
او عُزّاه او اخيو زامنو دَ ابيناداب هغه نوي ګاډي بيوه ٤ او ٤
دوي دَ ابيناداب له کورنه چه په جبعه کښې وه صندوق دَ الله
واخست او اخيو دَ صندوق دَ وړاندِ ته ٥ او داؤد او ټول ٥
کور دَ اسرائيل دَ خداوند دَ وړاندِ په ټولو قسمونو دَ سرودونو
له لرګو دَ سرود او په ستار او په ربابونو او په تنبلونو او
په ګنګرو او په ژنګولو سره لوبې کولې ٦ او چه دوي دَ ناخون ٦
ودرمند ته ورسيدل نو عُزّاه لاس صندوق دَ الله ته اوږد کړ
او وئې نيوه ځکه چه غوايانو لتې وهلې ٧ نو په عُزّاه باندِ غضب ٧
دَ الله ګرم شه او هغه ځاي الله دې ووهه دَ غلطۍ دَپاره
نو هلته دَ الله صندوق څنګه مړ شه ٨ او داؤد خپه شه ٨

ځکه چه خداوند په عُزّاه پرڅونه وکړه او تر نن ورځي پوري ئې دَ
۹ هغه ځاي نُوم پارِص عُزّاه وباله ۹ او په دغي ورځي کښ داؤد له
خداوند نه وويريده وئې ويل چه دَ خداوند صندوق به ماته
۱۰ څرنګ راشي ۱۰ او داؤد و نه غوښتل چه دَ خداوند صندوق ځان
ته راوړي دَ داؤد په ښهر کښ نو داؤد هغه دَ عوبيد ادوم
۱۱ الجِتّي کور ته وګرزاوه ۱۱ او صندوق دَ عوبيد ادوم جِتّي په کور
کښ دري مياشتي پاتي وه او خداوند عوبيد ادوم او ټول کور دَده
۱۲ مبارک کړ ۱۲ او داؤد بادشاه ته خبر ورکړي شه چه خداوند دَ
عوبيد ادوم کور مبارک کړ او ټول مال دَده په سبب دَ صندوق
دَ الله نو داؤد لاړ او صندوق دَ الله ئې دَ عوبيد ادوم له کورَ په
۱۳ خوشحالئِ سره دَ داؤد و ښهر ته وخيژاوه ۱۳ او هر کله چه پورته کونکي
دَ خداوند دَ صندوق به شپږ قدمونه په قدم سره وکړل نو غويي
۱۴ او څورب سخي به ئې ذبح کاوه ۱۴ او داؤد په ټول توت سره دَ
۱۵ خداوند دَ وړاندِ ګډيده او داؤد دَ کتان په افود کمربسته وه ۱۵ او
داؤد او ټول کور دَ اسرائيل صندوق دَ خداوند په نارو او په
۱۶ آواز دَ نورنګ خيژونکي وُو ۱۶ او چه صندوق دَ خداوند دَ داؤد
ښهر ته ننه‌وت نو ميکال لور دَ شاؤل له دريڅي نه وکتل او
داؤد بادشاه ئې دَ خداوند دَ وړاندِ ترپيدونکَي ګډيدونکَي وليد
۱۷ نو دي په خپل زړه کښ سپک وګڼه ۱۷ او هغوي صندوق دَ
خداوند ننه‌يوست او هغه ئې دَ خيمي په مينځ چه داؤد ورته ودرولي
وه په خپل مکان کيښود او داؤد سيزونکي قربانئ او دَ سلامتيا
۱۸ ذبحي دَ خداوند دَ وړاندِ وخيژاولي ۱۸ او چه داؤد دَ سيزونکي
او دَ سلامتيا له قربانئِ خيژولو نه وزګار شه نو دَ لښکرو دَ
۱۹ خداوند په نوم ئې اُمّت ته برکت ورکړ ۱۹ او ټول اُمّت ته او
ټول ټولي دَ اسرائيل ته هم سړي ته هم ښځي ته هري يوي ته

ئي يو کاک دَ ډوډئِ او يوه کوډئِ دَ شرابو او يو قرص دَ موېزانو
ووېشل بيا ټول اُمّت هر يو خپل کورته لاړ ۲۰ او داؤد وجاروت ۲۰
تا چه خپل کورته برکت ورکړي او ميکل لُور دَ شاؤل دَ داؤد وړُنجي
ته ورووتله او وئي ويل چه دَ اسرائيل بادشاه نن ورځ څه رنګ
شاندار وه چه نن ورځ په سترګو دَ وينځو دَ مريونو خپلو کښ ئي
ځان بربنډ کړ لکه چه يو له خوشيو ځان بربنډ کړي ۲۱ نو داؤد ميکالې ۲۱
ته ووِ چه دا دَ هغه خداوند دَ وړاندِ وه چه زه ئي ستا دَ پلار او
دَده دَ پلار دَ ټول کور په نسبت غوره کړم تا چه دَ خداوند په
اُمّت په اسرائيل مِر امير ودروي او زه به دَ خداوند دَ وړاندِ
لوبي کوم ۲۲ بلکه زه به له دي هم سپک وګنړلي شم او په نظر ۲۲
خپل کښ به حقير شم ليکن دَ هغو وينځو په نزد چه ته ئي يادوي زهْ
به عزّتدار شم ۲۳ او ميکال لُور دَ شاؤل دَ مرګ تر ورځي پوري زوي نه لارهْ ۲۳

# اوم باب

۱ او چه بادشاه په خپل کور کښ کښيناست او خداوند له ټولو ۱
طرفونو له ټولو دُښمنانو په قرار کړ نو داسي وشول ۲ چه بادشاه ناتان ۲
نبي ته ووِ ګوره که نه چه زه دَ لرګو په کور کښ اوسم او صندوق
دَ الله دننه په پردو کښ اوسي ۳ نو ناتان بادشاه ته ووِ لاړ شه ۳
او هرڅه چه په زړه کښ دِ دِي وئي کړه ځکه چه خداوند در سرهْ
دَي ۴ نو په دغي شپي کښ داسي وشول چه کلام دَ خداوند راغي ۴
ناتان ته ئي وويل ۵ چه لاړ شه او ځما بنده داؤد ته داسي ووايه ۵
خداوند وائي چه ته ځما دَ اوسيدلو دَپاره کور جوړوي څه؟ ۶ نو ما ۶
له هغه وخته چه بنياسرائيل له مصره راوخيژول تر دي ورځي پوري
په کور کښ اوسيدلي نه يم بلکه په مسکن او په خيمي کښ ګرځيدلي
يم ۷ او په هرځاي چه زه له ټول بنياسرائيل سره ګرځيدلي يم دَ ۷

اسرائيل له کمېو عصا سره ما امر ورته وکړ چه ځما قوم اسرائيل
دِ وڅروِي په يوي خبرې سره مِ خبره وکړه چه تاسو ولي ځما
۸ دَپارَ دَ لمنځو کور جوړ کړي نه دئَ ۸ او اوس ته ځما بندَ داؤد
ته داسي ووايه چه خداوند دَ لښکرو داسی وايي چه ته مِ له
شپاله دَ ګډورو له ورستو نه را ونيولي تاچه ته ځما په قوم اسرائيل
۹ باندي امير شي ۹ او هرچرته چه ګرزيدي زه به درسره وم او
ستا ټول دُښمنان ستا له وړاندِ نه مِ پرېکړِي دِي او تا ته به زه
۱۰ لوي نوُم لکه نوُم دَ لويو دَ زمکي جوړ کړم ۱۰ او زه به خپل اُمّت
اسرائيل ته مکان مقرّر کړم او زه به دوي لګوم نو دي به په خپل
مکان کښ اوسِي او بيا به خپه کړي نه شِي او دَ وړاندِ په شان
۱۱ به ئي بيا دَ ناراستئِ زامن ذليل نه کړِي لکه چه په اول کښ ۱۱ او
له هغي ورځي نه چه په خپل اُمّت مِ قاضيان مقرّر کړل او زه به
تا له ټولو دښمنانو ستا نه راحت درکړم بيا خداوند درته وايي
۱۲ چه خداوند به درته کور جوړ کړِي ۱۲ او هرکله چه ستا ورځي پوره
شِي او له خپلو پلرونو سره ځملي نو زه به پس له تا نه ستا اولاد
چه ستا له کُلمو نه راووزي او دَ هغه بادشاهِي به ثابتَ کړم
۱۳ ۱۳ هغه به ځما دَ قوم دَپارَ کور بِنا کړِي او تر ابدَ پوري زه به دَ
۱۴ هغه دَ بادشاهئِ کرسِي مضبوطه کړم ۱۴ زه به دَ هغه پلار شم او
هغه به مِ زوي وِي او که هغه کوږ شِي نو زه به په سوټي دَ سړو
۱۵ او په ګروړو دَ بنِي‌آدم تنبيه ورکړم ۱۵ ليکن مهربانئ ځما به
ورِ و نه ګرزِي لکه چه ما له شاؤل نه لري کړه چه ستا له وړاندي
۱۶ نه مِ لري کړ ۱۶ او ستا کور او ستا بادشاهِي به تر ابدَ پوري ستا
دَ وړاندِ په امن کړي شِي او ستا کرسِي به تر ابدَ پوري قايمه وِي
۱۷ او دَدي ټول کلام په موافق او دَدی ټولي رؤيا په موافق ناثان
داؤد ته خبري وکړي

۱۸ ۱۸ نو داؤد بادشاه ننوت او دَ خداوند دَ وړاندِ کښيناست
او وئې ويل چه اي خاوندَ يهوه زه څوک يم او کور مِ څه دَي چه
۱۹ تر دي پوري دِ رسولي يم ۱۹ او دا هم ستا په سترګو کښ کم دَي اي
خداوندَ يهوه او هم دِ دَ خپل بنده دَ کور په باب کښ تر لري
زماني پوري خبري وکړي او دا دَ سړي عادت دَي څه ؟ اي خاوندَ يهوه
۲۰ ۲۰ او داؤد به دَ ويلو دَپارَ څه له تا سره زيات وکړي ځکه چه ته
۲۱ خو اي خاوندَ يهوه خپل بنده پيژني ۲۱ دَ خپلي خبري دَپارَ او دَخپل
زړه په موافق دِ دا ټول لوي کارونه وکړه تاچه خپل بنده ويوهوي
۲۲ ۲۲ دَدي دَپارَ ته عظيم يي خداوندَ الله ځکه چه ستا په شان
نشته او بي له تا نه الله نشته په موافق دَ هرڅه چه مونږ په خپلو
۲۳ غوږونو اوريدلي دِي ۲۳ او کوم اُمّت په زمکه باندِ ستا دَ قوم اسرائيل
په شان دَي هغه چه الله ېځپله ورغي چه خپل ځان ته ئې دَ قوم دَپارَ
په فديه سره واخلي او چه خپل نُوم پرِ کيږدي او چه تاسو لره لوي
کارونه وکړي او ستا دَ زمکي دَپارَ هولناک کارونه دَ هغه خپل اُمّت
دَ وړاندِ چه دَ مصر له قومونو او دَدوي له خدايانو دِ دَ ځان دَپارَ
۲۴ په فديه واخستل ۲۴ او دَ ځان دَپارَ دِ خپل اُمّت اسرائيل اُمّت
۲۵ مقرّر کړ تر ابدَ پوري او ته اي خداوندَ دَدوي الله شوي ۲۵ او اوس
اي خداوندَ الله هغه کلام چه تا دَ خپل بنده په حق کښ او دَده
دَ کور په حق کښ کلام وکړ تر ابدَ پوري ثابت کړه او لکه چه دِ
۲۶ ويلي دِي هسي وکړه ۲۶ او تر ابدَ پوري دِ ستا نوم عظيم وي په دَي
ويلو سره چه خداوند دَ لښکرو الله په اسرائيل دي اوچه ستا دَ
۲۷ بنده داؤد کور ستا دَ وړاندِ ثابت شي ۲۷ ځکه چه ته اي خداوندهٔ
دَ لښکرو الله دَ اسرائيل تا بنده خپل ته ښکاره کړي دِي په دي
ويلو سره چه زه به تا لره کور بنا کړم دَدي دَپارَ ستا بنده په
زړه خپل کښ دا مُندلي دِي چه له تا نه دُعا په دا دعا سره وغواړي

۲۸ ۲۸ او اوس اي خداوندَ يهوه ته هغه الله يي او كلام ستا حق دَي
۲۹ او دا ښيگړه دِ بند خپل ته په كلام سره راوړلي دَه ۲۹ نو اوس
اي خداوندَ اراده وكړه او دَ خپل بنده كور ته بركت وركړه چه
تر ابدَ پوري ستا دَ وړاندِ وِي ځكه چه تا اي خاوندَ يهوه كلام كړي
دَي نو ستا دَ بنده كور دِ تر ابدَ پوري په بركت سره مبارك وِي +

# اتم باب

۱ ۱ او پس له دغه داؤد فلسطيان ووهل او ذليل ئي كړل او داؤد
۲ واكي دوالي ښهردَ فلسطيانو له لاس نه راونيولي ۲ او موابيان ئي
ووهل او په رسئ ئي كچ كړل او په زمكه ئي وويشتل او په دوو
رسيو ئي كچ كړل دَ هلاكولو دَپارَ او په يوي پوره رسئ دَ ژوندِي
پرينبولو دَپارَ او موابيان دَ داؤد مريونه شول او هديي ئي ور ته
۳ راوړي ۳ او داؤد حددعزر زوي دَ رحوب بادشاه دَ صوبه وواهه
۴ هركله چه لاړ شه تا چه دَ فرات په درياب بيا قبضه وكړي ۴ او داؤد
له هغه نه يو زر اوه سوه سواره او شل زره پياده راونيول او
داؤد ئي دَ گاډيو دَ آسونو سپيني ووهلي او له هغو ئي سل آسونه
۵ پرينبودل ۵ او ارام دَ دمشق دَ كومك دَپارَ وحددعزر بادشاه
دَ صوبه ته ورغي نو داؤد له آرامَ دوه ويشت زره سړي ووهل
۶ ۶ او داؤد په ارامي دمشق كښ نگهباني لښكريان كيښول او اراميان
دَ داؤد مريونه شول او هديي ئي ورته راوړي او خداوند به دَ
۷ داؤد بري كاوه په هر لوري چه به ئي تلل كول ۷ او داؤد ډالونه
دَ زرو چه دَ هددعزر په نوكرانو وُو واخستل او اورشليم ته ئي
۸ راوړل ۸ او له بطح او له بيروتاي نه چه ښهرونه دَ هددعزر
۹ وُو دي بادشاه داؤد بيحدَ ډير زيړ راونيول ۹ او توعي بادشاه
۱۰ دَ حمات واوريدل چه داؤد ټول لښكر دَ حددعزر وواهه ۱۰ نو

نوِعِي خپل زوي يورام داؤد بادشاه ته ورواستاوه چه دَده دَ
سلامتئ پوښتنه وکړي او مبارک بادِي ورکړِي ځکه چه ده له حددعزر
سره جنګ وکړ او وئ واهه ولي چه دَ حددعزر له توعِي سره
جنګونه وُو او دَده په لاس کښ د سپينو اودسرو او دَ زيړو لوښي
۱۱ وُو ۱۱ او دا هم داؤد بادشاه خداوند ته مقدّس کړل سره له هغو سرو
او سپينو زرو چه ده مقدّس کړل هغو ټولو قومونو چه ده مغلوب
۱۲ کړل ۱۲ له ارام نه او له موآب نه او له بنِي عمون او له فلسطيانو او
له عماليق نه او له لوټ دَ حددعزر زوي دَ رحوب بادشاه دَ صوبه
۱۳ ۱۳ او داؤد په وقت دَ راجارونلو له وهلو دَ اتلسو زرو سرو له اراميانو
۱۴ نه دَ مالګي په خوړ کښ ئ يادګارِي ودروله ۱۴ او په ادوم کښ ئ
نګهبانان کښينول او په ټول ادوم ئ نګهبانان کښينول او ټول
ادوميان دَ داؤد مريونه وُو او خداوند به داؤد برکاوه هر چرته
چه به ئ تلل کول
۱۵ ۱۵ او داؤد په ټول اسرائيل بادشاهِي وکړه او داؤد به خپل
۱۶ ټول اُمّت عدل او انصاف کاوه ۱۶ او يواب زوي دَ ضرويا ه په لښکر
۱۷ وه او يهوشافاطِي زوي دَ اخيلود تاريخ ليکونکي وه ۱۷ او صادوق
زوي دَ اخيطوب او اخيمالک زامن دَ ابياثار کوهنان وُو او سرايا
۱۸ کاتب وه ۱۸ او بناياه زوي دَ يهوياداع په کريتي او په فليطي وه
او دَ داؤد زامن وکيلان وُو ❊

# نهم باب

۱ ۱ او داؤد وُوِ چه باري اوس څوک مونديل کيږي چه دَ شاؤل له
۲ کور نه باقي دِي چه زه مهرباني ورسره وکړم دَ پار دَ يوناتن ۲ او دَ
شاؤل دَ کور يو مريي وه ضيبا ئ نوم وه نو داؤد ته ئ راوباله او
۳ بادشاه ورته ووَيل ته ضيبا يې؟ هغه وُوِ مريي ستا ۳ نو بادشاه

ورته وویل چه تر اوسه پورې دَ شاؤل دَ کور څوک مونده کیږي
چه زه مهرباني دَ الله ورسره وکړم؟ نو ضیبا بادشاه ته وویل تراوسه
۴ دَ یونتن یو ځوي شته چه په دوارو پښو ګډ دَي ۴ نو بادشاه ورته
وویل چه اوس هغه چرته دَي؟ نو ضیبا بادشاه ته ووِکوره هغه
۵ دَ ماکیر دَ زوي دَ عمئیل په کور کښې په لودبار کښې دَي ۵ نو داؤد
بادشاه سړي ورواستول او هغه ئې دَ ماکیر دَ زوي دَ عمئیل له کوره
٦ نه چه په لودبار کښې وه راونیوه ٦ نو مفیبوشت زوي دَ یونتن زوي دَ
شاؤل داؤد ته ورغي او په مخ پریوت او سجده ئې وکړه او داؤد
۷ ورته وویل مفیبوشتَ او ده وویل ګوره ستا بنده ۷ او داؤد ورته
وویل مه وېرېږه زه بالله تا سره. مهرباني کوم ستا دَ پلار یونتن په
خاطر او تا ته به ټوله ورشو ستا دَ پلار شاؤل بیرته درکوم او ته به
۸ تل ترتله ځما په دسترخوان ډوډئِ خوري ۸ نو ده سجده وکړه وئې ویل
چه ستا مریي څه دَي چه ته ځما په شان مړه سپي ته نظر کوي-
۹ ۹ او بادشاه ضیبا نوکر دَ شاؤل راوباله او ورته ئې وویل چه
هرڅه چه دَ شاؤل او دَده دَ ټول کور دِي ما ستا دَ خاوند زوي
۱۰ ته ورکړي دِي ۱۰ او ته او ستا زامن او ستا نوکران دِ په زمکه کښې
مشقت کوي او ته ئې دَننه راوړه چه ستا دَ خاوند دَ زوي ډوډئِ
وِي چه خوري ئې او مفیبوشت زوي دَ خاوند ستا به مدام ځما
په دسترخوان ډوډئِ خوري او دَ ضیبا پنځلس زامن او شل نوکران
۱۱ وُو ۱۱ نو ضیبا بادشاه ته ووِ هرڅه چه ځما خاوند بادشاه خپل مریي
ته فرمایي هسې به ستا مریي وکړي او مفیبوشت به ځما په
۱۲ دسترخوان لکه یو له زامنو دَ بادشاه خوري ۱۲ او دَ مفیبوشت یو
وړوکي زوي وه میکا ئې نوم وه او هغه ټول چه دَ ضیبا په کور
کښې اوسیده دَ مفیبوشت مریونه وُو ۱۳ او مفیبوشت په اورشلیم
کښې اوسیده ځکه چه ده مدام دَ بادشاه په دسترخوان خوړل او په

دوارو پښو کړه وه ÷

# لسم باب

۱ آ او پس له دې نه داسې وشول چه دَ بني عمون بادشاه مړ شه
۲ او حانون ځوي ئې دَده په ځاي بادشاهي وکړه ۲ نو داؤد وئِ چه
زه به له حانون زوي دَ ناحاش سره مهرباني وکړم لکه چه دَده
پلار له ما سره مهرباني وکړه نو داؤد دَ خپلو مريونو په لاس
ور واستاوه چه دَده دَ پلار دپاره وئه ورکوي نو دَ داؤد مريونه دَ
۳ بني عمون و زمکي ته ورغلل ۳ نو سردارانو دَ بني عمون حانون خاوند
خپل ته وُوئِ چه باري داؤد ستا پلار ته ستا په سترګو کښ عزّت
ورکوي څه ؟ چه تا ته ئې دا ده رسان راستولي دي ؟ نو کنړه دَ ښهر
دَ لټولو او دَ څار کولو او دَ ارولو دپارَ نه دي څه ؟ چه داؤد خپل
۴ مريونه دِ راستولي دي؟ ۴ نو حانون مريونه دَ داؤد ونيول او نيمي ږيرې ئې
ورنه وخريلي او جامي ئې له مينځ نه تر ځنډوي پوري پريکړې او رخصت
۵ ئې کړل ۵ او هرکله چه داؤد ئې خبر کړ نو دَ هغو دَ استقبال دپارَ
ئې سړي واستول ځکه چه هغه سړي ډير شرمنده وُو او بادشاه
ورته وُوئِ چه تاسي په اريحا کښ ګرزيږئ څو چه مو ږيرې لوي شي
۶ بيارا وجاروزئ ۶ او چه بني عمون وليدل چه دوي دَ داؤد په نزد بدبوي
شول نو بني عمون واستول او دَ بيت رحوب له اراميانو او دَ ضوبا له
اراميانو ئې شل زره پياده په مزدورئ واخستل او دَ معکه له بادشاه
۷ نه زر سړي او له ايش طوب نه دولس زره سړي ۷ نو چه داؤد واورېدل
۸ يواب او ټول لښکر دَ بهادرانو ئې واستاوه ۸ او بني عمون ووت او دَ
دروازي په مدخل ئې صفونه دَ جنګ دپارَ جوړ کړل او اراميان دَ ضوبا
او دَ رحوب او سړي دَ طوب او دَ معکه يوازي په ورشو کښ وُو -
۹ ۹ نو چه يواب وليد چه دَ جنګ مخ له وړاندې او له ورستو لوري
دَي نو له ټولو غوره شويو دَ اسرائيل نه ئې غوره کړل. او دَ اراميانو

۱۰ مخې ته ئي صف جوړ کړ ۱۰ او نور اُمّت ئي دَ خپل ورور ابیشاي ولاس
۱۱ ته وسپاره او هغوي دَ بني‌عمون مخې ته صف جوړ کړ ۱۱ او وئي ویل
چه که ارامیان په ما باندِ تېینګ شِي نو ته ځما خلاصي وکړه او
که بني‌عمون په تا باندِ تېینګ شِي نو زه به درشم چه خلاص دِ کړم۔
۱۲ ۱۲ نو ته تېینګ شه او ځان تکړه کړه اودَ خپل اُمّت دَپارَ اوځموږ
دَ الله دَ ښهرونو دَپارَ خداوند دِ هغه وکړي چه دَده په سترګو
۱۳ ښِه نیک وِي ۱۳ نو یواب او هغه اُمّت چه ورسره وه دَ ارام وجنګ
۱۴ ته نژدي شول او هغوي دَده له مخې نه وتښتیدل ۱۴ اوچه بني‌عمون
وليدل چه آرام وتښتیده نو دوي هم دَ ابیشاي له مخې وتښتیدل او
ښهر ته ننوتل نو یواب له بني‌عمون را وجاروت اورشلیم ته راغي
۱۵ ۱۵ اوچه ارامیانو ولیدل چه دوي دَ اسرائیل له مخې نه ووهلي
۱۶ شول نو سره ټول شول ۱۶ او حددعزر واستول او هغه ارامیان چه
پوري خوا دَ دریاب وُو را ئي وستل او حیلام ته ئي بوتلل او دَ دوي
۱۷ دَ وړاندي شوبک سردار دَ لښکر دَ حددعزر وه ۱۷ اوچه داؤد ته
خبر کند شول نو ټول اسرائیل ئي ټول کړل او له اردن پوري شه
او حیلام ته ورغي او ارامیانو دَ داؤد په مقابل صفونه وتړل او
۱۸ ورسره وجنګیدل ۱۸ او ارامیان دَ اسرائیل له مخې وتښتیدل او
داؤد له ارامیانو اوه سوه کاډِي اوڅلویښت زره سواره ووژلل
۱۹ او شوبک سردار دَ لښکر ئي وواهه او هلته مړ شه ۱۹ اوچه
ټولو بادشاهانو چه نوکران دَ حددعزر وُو ولیدل چه دوي دَ اسرائیل
له مخې ووهلي شول نو له اسرائیل ئي روغه وکړه اودَده خدمت ئي کاوُ
او ارامیان ووېریدل چه بیا بني‌عمون ته کمک ورکړي ❊

# یولسم باب

۱ ۱ او په جارونلو دَ کال کښ دَ بادشاهانو دَ خروج په وقت داسي وشول

چه داؤد يواب او خپل مريونه ور سره واستول او ټول اسرائيل
او بني عمون ئي خراب کړل او ربّه ئي گير کړه ليکن داؤد په اورشليم
۲ کښې اوسيده ۲ او د نماښام په وقت داسې وشوه چه داؤد له خپل
کټ پاڅيده او د بيت الملک په بام باندې گرزيده او د بام له پاسه ئې
۳ يوه ښځه لمبيدونکي وليدله او هغه ښځه بيحده ښائسته وه ۳ نو
داؤد ور واستوه او د هغې ښځې ئې پوښتنه وکړه نو يوه وويل چه
۴ باري دا د اليعام لور بتشبع ښځه د اورياحتّي نه ده څه؟ ۴ نو
داؤد ملاقاتيان ورواستول او وا ئې خسته او ور ننه وتله او دې
ورسره څملاست او دا له خپلې ناپاکئ نه پاکه شوې وه بيا خپل کور
۵ ته وجاروتله ۵ او هغه ښځه حامله شوه نو دې ور واستوه او
۶ داؤد ئې خبر کړ او وئې ويل چه زه حامله يم ۶ نو داؤد يواب ته
واستاوه و ئې ويل چه اورياحتّي ما ته را واستوه نو يواب اوريا
۷ داؤد ته ور واستوه ۷ نو اوريا ورته راغې نو داؤد له سلامتيا د
۸ يواب او له سلامتيا د اُمّت او د جنگ د حال پوښتنه وکړه ۸ او
داؤد اورياه ته وويل چه کورته ورځه او پښې دې ووينځه نو اوريا
د بادشاه له کور نه راووت او د ده په ورستو د بادشاه له نزد
۹ نه يوه بخره راووتله ۹ او اوريا د بادشاه د کور په دروازه کښې اوده
شه سره له ټولو مريونو د خاوند خپل او خپل کورته کوز نه شه
۱۰ ۱۰ نو داؤد ئې خبر کړ و ئې ويل چه اوريا خپل کور ته کوز نه شه
نو داؤد اوريا ته ووې چه باري ته له سفر نه راغلې نه يې څه؟ نو
۱۱ ولې کورته نه کوزيږې ۱۱ نو اوريا داؤد ته وويل چه صندوق او اسرائيل
او يهودا په جنگړو کښې اوسي او خما خاوند يواب
او خما د خاوند مريونه د ورشو په مخ ډيره دي او زه خپل کور
ته لاړ شم چه وخورم او وڅښم او د خپلې ښځې سره څملم څه؟ ستا
۱۲ په ژوند او ستا د ځان په ژوند دا کار به و نه کړم ۱۲ نو داؤد

اوریا ته وویل چه ته دا ورځ هم پاتي شه او صبا به دِ رخصت
۱۳ کړم نو اوریا دغه ورځ او صبا په اورشلیم کښې پاتي شه ۱۳ او
داؤد وباله او دَده دَ وړاندِ ئي وخوړل او وڅښل او کیفي ئي کړو
او نماښام دَ څملاستو دَپارَ ووت چه دَخپل خاوند له مریونو سره
۱۴ څملي او کور ته کوز نه شه ۱۴ او په صباح کښې داؤد یوآب ته خط
۱۵ ولیکه او دَ اوریا په لاس ئي ور واستاوه ۱۵ او په خط کښې ئي ولیکل
ویل ئي چه اوریا دَ سخت جنګ په مخ ولګوه او دَده له ورستو وجاوزئ
۱۶ چه ووهلي شي او مړ شي ۱۶ او داسي وشوه چه یوآب ښهر څار کړو نو
اوریا ئي په هغه ځاي کښې ولګاوه چه دي پوهیده چه دَ قوت سړي
۱۷ دلته دِي ۱۷ نو دَ ښهر سړي ووتل او له یوآب سره وجنګیدل نو
څو تنه له اُمّتَ دَ داؤد له مریونو پریوتل او اوریاحِتّيّ هم مړ شه
۱۸ ۱۹ ۱۸ نو یوآب واستاوه او داؤد ئي په ټول جنګ خبر کړ ۱۹ او قاصد
ته ئي دفرمایل و ئي ویل هرکله چه ته دَ جنګ له خبري کولو بادشاه
۲۰ ته له خبرو وزګار شي ۲۰ او داسي به وشي که دَ بادشاه غضب پورته
شي او تا ته دوايي چه تاسي ولي دَ جنګ دَپارَ ښهر ته نزدي شوئ
۲۱ او نه پوهیدئ چه دوي به له دیوال نه وولي ۲۱ ابي‌ملک زوي دَ یربشت
چا ووهه کنه یوي ښځي له دیوال نه دَ میچني په پاسي پله ونه غورزاوه
شه ؟ چه په تیبض کښې مړ شه تاسو ولي دیوال ته نژدي شوئ ؟
۲۲ نو ته ووایه چه ستا مریي اوریاحِتّيّ هم مړ دی ۲۲ نو قاصد لاړ شه
او راغي او داؤد ئي په هرڅه چه یوآب پري استولي وه خبر کړ
۲۳ ۲۳ او قاصد داؤد ته وُوِ چه سړیو په مونږ خبږ وکړ او ورشو
۲۴ ته را ووتل نو مونږ دَ دروازي تر مدخل پوري ورپسي شوو ۲۴ نو
ویشتونکي ستا په مریونو دَ دیوال له پاسه نه وویشتل او ستا
له مریونو څني مړه شول او ستا بنده اوریاحِتّيّ هم مړ شه
۲۵ ۲۵ نو داؤد قاصد ته وویل چه ته یوآب ته داسي ووایه چه دا

خبر دِ ستا په سترګو کښې بده نه شِي څکه چه توره لکه دغه هسې
شغه خورِي ته په دغه ښهر خپل جنګ سخت کړه او ويران ئې کړه
٢٦ او تکړه ئې کړه ٢٦ نو چه دَ اوريا ښځې واوريدل چه دَدې سړې
٢٧ اوريا مړ شه نو په خپل ميړه ئې ټهر وواهه ٢٧ اوچه وير ئې
تير شه نو داؤد ورواستاوه اوخپل کورته ئې راوسته او ښځه
ئې شوله او ده له ئې يو زوي وزيږاوه او دا کار چه داؤد وکړ دَ
خداوند په سترګو کښې بد راغي ✣

# دولسم باب

١ ١ نو خداوند ناثان داؤد ته واستاوه او هغه ورغې ورته وئې
ويل چه په يوه ښهر کښې دوه سړِي وُو له دغو دواړو نه يو
٢ دولتمند او بل خوار وه ٢ او هغه دولتمند بې حدَ ډيري ميږې او
٣ غوا لرلې ٣ او هغه خوار هيڅ شَي نه لاره مګر يوه وړوکې ايرږئِ
چه ده پيرودلې او ساتلې وه او هغه له ده او دَده له څامنو سره لوي
شوي وَه دَده له نوړئِ ئې خورله او له کاسې ئې څښله او دَده په
٤ غيږ کښې به څملاستله او دَ لور په شان ئې وه ٤ نو هغه دولتمند
سړِي له يو مسافر راغې نو هغه له خپلو ګډورو او له خپلو
غواؤ له اخستلو نه زړه سوي وکړ چه هغه مسافر چه ده له
راغلې وه تياري وکړې نو دَ هغه خوار سړِي ايرږئِ ئې ونيوله او
٥ هغه سړِي له چه وله راغلې وه تياره ئې کړله ٥ نو په هغه سړِي
بانډِ دَ داؤد خپګې ډيره ګرمه شوله او ناثان ته ئې وُوِ چه يهوه
حَي دَي چه دغه سړِي چه دا کار ئې کړې دې زوي دَ مرګ دَي
٦ ٦ او دَ هغه ايرږئِ دِ څلورګونَ ور وګرزوِي څکه چه ده دا کار
وکړ او زړه سوي ئې ونه کړ
٧ ٧ نو ناثان داؤد ته وُوِ چه هغه سړِي ته يې هم داسې خداوند

دَ اسرائيل الله وايي چه ما ته مسحه کړي بادشاه په اسرائيل او
٨ دَ شاؤل له لاسه مِ خلاص کړي ۸ او تا ته مِ ستا دَ خاوند کور درکړ
او ستا دَ خاوند ښځې ستا په غيږ کښ او تا ته مِ دَ اسرائيل او
دَ يهودا کور درکړ او که هغه لږ ووُ نو تا ته به مِ دغه او هغه
٩ هم زيات کړي ووُ ۹ نو ولي دِ دَ خداوند کلام سپک وګاڼه چه
دَده په سترګو کښ دِ بدي وکړه او اوريا حِتّي دِ په تُوري وهلَی
دَی او دَده ښځه دِ خپل ځان ته ښځه کړه او هغه دِ دَ بني عمون
١٠ په تُوري وژلي دَی ١٠ او اوس به ستا له کور نه تر ابدالآباده
تُوره لري. نه شي ځکه چه زه دِ سپک کړي يم او دَ اوريا حِتّي
١١ ښځه دِ ونيوله تاچه تا لره ښځه شي ١١ خداوند داسي وايي ګوره زه
به په تا بانديِ ستا له کوره يوه بدي پورته کړم او زه به ستا ښځي
ستا دَ سترګو دَ وړانديِ راونيسم نو ستا ګاونډي ته به يې ورکړم
١٢ او هغه به ستا له ښځو سره په دي عينِ نمر کښ ځملي ١٢ تا خو
په پټه وکړل ليکن زه به دا کار دَ ټول اسرائيل دَ وړانديِ او دَ
١٣ نمر دَ وړانديِ وکړم ١٣ نو داؤد ناثان ته وويل چه ما دَ خداوند خطا
کړي دَه نو ناثان داؤد ته وويل چه خداوند به هم ستا خطا له تانه
١٤ لري کړي دَه چه ته به مړ نه شي ١٤ بي له ذي چه دَدي کار په
کولو به دُښمنان دَ خداوند په سپکه سره سپکه کوي هم هغه
زيږيدلي زوي به دِ په مړکيدلو مړ شي او ناثان خپل کور ته لاړ
١٥ ١٥ او خداوند دَده هغه زوي وواهه چه داؤد له دَ اوريا ښځي
١٦ وزيږاوه او هغه بيمار شه ١٦ نو داؤد دَ هغه هلک دَپارَه الله
ته سوال وکړ او داؤد روژه ونيوه او ننه وت او په زمکي ځملاست
١٧ شپه يې تيره کړه ١٧ نو بزرګان دَده کور ته ورغلل تاچه له زمکي
يې پاځوي او ده ونه غوښته او له دوي سره يې ډوډئ ونه خوړه
١٨ ١٨ او داسي وشول چه په اوومه ورځ هغه هلک مړ شه نو

مړیونه دَ داؤد ویریدل چه دي خبر کړِي چه هلک مړ دیَ ځکه چه
دوي وویل کورئ هرکله چه هلک ژوندي وه موږ ورته وویل
او ده مو آواز وانه وریده نو څرنګ به ورته ووایو چه هلک
۱۹ مړ دیَ دي به ډیر بد کار وکړِي ۱۹ او داؤد چه ولیدل چه دَده
مړیونه سره پُس پُسي کوِي نو داؤد پوه شه چه هلک مړ دیَ نو
داؤد خپلو مړیونو ته وُوِ چه هلک مړ دیَ څه ؟ هغو وویل چه مړ
۲۰ دیَ ۲۰ نو داؤد له زمکي پاځیده او و ئي لنبل او ځان ئي غوړ کړ او
جامي ئي بدلي کړي او دَ خداوند کور ته ننه وت او سجده ئي
وکړه بیا خپل کورته ورغي او و ئي غوښتله او هغو ډوډئِ ورته
۲۱ کیښوه او ده وخوړه ۲۱ او دَده مړیونو ورته وُوِ چه دا څرنګ کار
دیَ چه ودِ کړ هرکله چه هلک ژوندي وه روژه دِ ولرله او ژړل
۲۲ دِ او چه هلک مړ شه پاځیدلي او ډوډئِ دِ وخوړه ۲۲ نو ده وُوِ
هرکله چه هلک ژوندي وه روژه مِ ولرله او ژړل م ځکه چه ویل
مِ چه څوک پوهیږِي چه خداوند به په ما مهرباني وکړِي او
۲۳ هلک به ژوندي پاتِي شِي ۲۳ او اوس خو مړ شه نو ځله روژه
و لرم زه توان لرم چه بیرته ئي را وګرزوم څه ؟ زه هغه ته ورتلونکي
۲۴ یم لیکن هغه به ماته راستون نه شِي ۲۴ او داؤد بتشبع ښځي
خپلي ته تسلّي ورکړه او ور ننووت او ورسره څملاست او زوي
ئي وزیږاوه او نوم ئي سلیمان و باله او خداوند ورسره محبّت
۲۵ وکړ ۲۵ او ناثان نبي لیُ ورواستاوه او دَ هغه نوم ئي یدیدیاه
۲۶ و باله دَ خداوند دَپاره ۲۶ او یوآب له ربّه دَ بنِي عمون سره وجنګیده
۲۷ او دَ بادشاهئِ ښهر ئي ونیوه ۲۷ او یوآب داؤد ته قاصد واستوه
و ئي ویل چه زه له ربّه سره جنګیدلي یم او دَ اوبو ښهر مِ
۲۸ هم ورته نیولِي دیَ ۲۸ نو اوس هغه باقِي اُمّت جمعَ کړه او په
ښهر ډیره وکړه او و ئي نیسه هسي نه چه زه ښهر ونیسم او

۲۹ څما نوُم پرِ و باله شِي ۲۹ نو داؤد ټول اُمّت جمع کړ او ربّه
۳۰ ته ورغي او ورسره وجنګيده او و ئي نيوه ۳۰ او دَ هغه دَ بادشاه
تاج ئي دَ هغه له سره واخست او دَ هغه وزن يو قنطار وه دَ
سرو زرو او له قيمت بها کاڼرو سره او هغه به دَ داؤد په سر وه
۳۱ او له هغه ښهر ئي ډير لوُټ راوويست ۳۱ او هغه قوم چه په
هغه ښهر کښ وه و ئي ويسته او هغوي ئي دَ اړو او دَ غوبلولو
دَ اوسپني دَ ګاډو دَ لاندِ کينبول او په تبرونو دَ اوسپني او په
ېچو دَ خښتو کښ ئي حکم ورکړ او داسي ئي له ټولو ښهرونو دَ
بنيعمون سره وکړل او داؤد او ټول اُمّت واورشليم ته وجاروتل

# ديارلسم باب

۱ ۱ او پس له دي داسي وشول چه دَ ابيشالوم زوي دَ داؤد يوه
ښائسته خور وه تاماره نوميده نو امنون زوي دَ داؤد پرِ مين وه
۲ ۲ او امنون دَ تاماري خور په سبب داسي تنګ شه چه رنځور شه
ځکه چه هغه پيغله وه نو امنون ته ګران په نظر کښ راغي چه
۳ څه ورسره وکړي ۳ او دَ امنون يو دوست وه يوناداب نوم ئي وه
۴ زوي دَ شمعِي ورور دَ داؤد او يوناداب بيحده حکمتي سړي وه ۴ او
هغه ورته ووِ چه اي دَ بادشاه زويه ولي داسي له يو صباح نه
تر بل صباحَ پوري ضعيف يي ته به مِ خبر نه کړي څه ؟ امنون
ورته ووِ چه زه په تاماري خور دَ ابيشالوم ورور خيل مين يم
۵ ۵ نو يوناداب ورته ووِ چه ته په کټ خپل څمله او ځان رنځور کړه
او چه پلار دِ ليدلو ته درشِي نو ته ورته ووايه چه تاماره خور
مِ دِ راشِي او خوراک دِ راکړِي او څما په نظر کښ دِ ډوډئِ جوړه کړي
۶ چه زه ئي وينم او دَ هغي له لاسَ ئي خورم ۶ نو امنون څملاست او
ځان ئي رنځور کړ نو بادشاه دَده ليدلو ته ورغي نو امنون بادشاه

تہ ووېل چہ تامارہ خور مې د راشي او خما دَ ورانډې ډوډۍ دلکشي
پراټي لاله پخې کړي چہ زہ ئي دَدې لہ لاسَ وخورم ٧ نو داؤد -
کور تہ تامارې تہ واستاوہ و ئې وېل چہ دَ امنون ورور خپل
کور تہ ورشہ او خوراک ولہ پخوہ ٨ نو تامارہ دَ امنون خپل ورور ٨
کور تہ ورغللہ او هغہ ملاست وہ او دې پېړہ واخستلہ او وائې غبلہ
اودَدہ پہ نظر کښې ئې پراټي جوړې کړې او پخې ئې کړې ٩ او تبخې ئې ٩
واخست اودَدہ دَ ورانډې ئې ایچولې او هغہ ئې لہ خوړلو انکار وکړ
او امنون ووېل چہ ټول سړي دِ رانہ ووزي او ټول سړي ورنہ
ووتل ١٠ او امنون تامارې تہ ووېل چہ خوراک خلوتخانې تہ دننہ ١٠
راوړہ چہ زہ ئې ستا لہ لاسَ وخورم نو تامارې هغہ دِلکشي پراټي
واخستلې چہ دې جوړې کړې وې او خلوتخانې تہ دننہ ئې امنون
ورور خپل تہ ورووړي ١١ او چہ دہ تہ ئې حاضرې کړې چہ و ئې ١١
خوري نو دہ ونیوہ او ورتہ و ئې وېل راشہ راسرہ څملہ اې خورې
١٢ نو دې ورتہ ووېل نہ اې خما ورورہ مہ مې رسوا کوہ ځکہ چہ داسې ١٢
پہ اسرائیل کښې نہ شي کېدلې تہ دا قباحت مہ کوہ ١٣ او زہ بہ ١٣
لہ دې رسوائي سرہ چرتہ لاړہ شم او تہ بہ پہ اسرائیل کښې دَیوہ لہ
احمقانو پہ طور شې او اوس بادشاہ تہ ووایہ ځکہ چہ هغہ بہ مې
لہ تا نہ منعہ نہ کړي ١٤ نو دہ خوښہ نہ کړہ چہ دَدې آواز واورې او ١٤
چہ دې لہ هغې تکړہ وہ نو و ئې دربولہ او ورسرہ څملاست ١٥ بیا ١٥
امنون لہ دې سرہ پہ ډېرې سختي کینې سرہ کینہ ورسرہ کولہ تر دې
حدہ چہ هغہ کینہ چہ دہ ورسرہ وکړہ لہ هغہ محبت نہ چہ دہ
ورسرہ کاوہ زیاتَ لویَ وہ او امنون ورتہ ووېل چہ پاسہ ورځہ
١٦ او دې ورتہ وُوِ چہ دَدې بدئ هیڅ سبب نشتہ زیاتہ بدي دغہ دَہ ١٦
چہ تہ مې شړې لہ هغې بدئ نہ چہ راسرہ دِ وکړہ او دہ ونہ غوښتہ
چہ دَدې واورې ١٧ او هغہ نوکر چہ دَدہ خدمت ئې کاوہ راوئې بالہ ١٧

١٨ وئې ويل چه دا رانه باهر وشړه او دروازې ورپسې قلف کړه ١٨ او
دَدې کتانۍ قبا وَه څکه چه دَ بادشاه لوڼړه چه پېغلې وې داسې
جامې به ئې اغوستې نو دَده خدمتګار هغه باهر وويستله او دروازې
١٩ ورپسې قلف کړه ١٩ نو تامارې ايرې په سر واچولې او هغه کتانۍ
قبا چه په دې وه وئې شلوله او لاس ئې په سر باندِ کېښود او په
٢٠ ناره سره تلله ٢٠ نو دَدې ورور ابيشالوم ورته ووِ چه ستا ورور
امنون درسره وه څه ؟ اوس اې خورې چپ اوسه هغه ستا ورور
دې ته په دې خبرې خپل زړه مه بده نو تاماره دَ خپل ورور
٢١ ابيشالوم کره پرېشانه اوسېدله ٢١ او چه داؤد بادشاه په دې ټولو
٢٢ کارونو خبر شه بې حده په غُصه شه ٢٢ او ابيشالوم امنون ته
هيڅ ښه او بد ونه ويل څکه چه ابيشالوم له امنون سره کينه لرله
په دې خبرې چه هغه دَده خور تاماره رسوا کړې وه
٢٣ ٢٣ او پس له دوو کالو دَ زمانې داسې وشول چه په بعلحصور
کښې چه افرائيم څخه دَې دَ ابيشالوم سکښتونکې وُو نو ابيشالوم ټول
٢٤ زامن دَ بادشاه وبلل ٢٤ او ابيشالوم بادشاه ته ورغې وئې ويل ستا
مريي سکښتونکې لرې او بادشاه او دَده نوکران دِ دَ خپل مريي سره
٢٥ لاړ شي ٢٥ نو بادشاه ابيشالوم ته ووِ نه نه اې زويه موږ ټول دِ
لاړ نه شُو تا چه په تا باندِ درانه نه شُو او ده ډېر تاکيد وکړ
ليکن هغه نه غوښته چه ورسره لاړ شي او ده ته ئې برکت ورکړ
٢٦ ٢٦ نو ابيشالوم وويل نو څما ورور امنون دِ راسره لاړ شي نو
٢٧ بادشاه ورته ووِ چه دَ څه دَپارَ درسره لاړ شي ٢٧ نو ابيشالوم په
ده باندِ تاکيد وکړ نو امنون او ټول زامن دَ بادشاه ئې ورسره واستول
٢٨ ٢٨ نو ابيشالوم خپلو نوکرانو ته وفرمايل وئې ويل ګورئ اوس هرکله
چه دَ امنون زړه په شرابو خوښ شي او زه تاسو ته ووايم چه امنون
ووهئ نو تاسې ئې ووژنئ او مه وېرېږئ ما تاسو ته فرمايلي نه دَي

څه؟ نو تاسو ټکره او زړمن دَ ټوت شئ ۲۹ نو نوکرانو دَ ابيشالوم ۲۹
په امنون هم هسي کار وکړ لکه چه ابيشالوم ورته فرمايلي وُو او
ټول زامن دَ بادشاه پاڅيدل او هر يو په خپل قچر سور شه او
وتښتيدل ۳۰ او چه دوي لا په لاري وُو داؤد ته خبر ورسيده ورته ۳۰
وويلي شول چه ابيشالوم ټول زامن دَ بادشاه وهلي دي يو هم ورنه
پاتي نه دي ۳۱ نو بادشاه پاڅيده خپلي جامي يې څيري کړي او په زمکه ۳۱
څملاست او ټول نوکران يې دَ بادشاه ولاړ او جامي يې څيري کړي وي ۳۲ نو ۳۲
يوناداب زوي دَ شمعي ورور دَ داؤد ځواب ورکړ و يې ويل چه
څما خاوند ته دِ ويلي نه شي چه دوي ټول ځوانان زامن دَ بادشاه
وژلي دِي څکه چه يواځي امنون مړ دي څکه چه ابيشالوم دا خبره
پېښي وه له هغي ورځي نه چه امنون دَده خور تاماره رسوا کړله -
۳۳ او اوس دِ څما خاوند بادشاه په زړه خپل کښ دا خبر نه ږدي ۳۳
چه وايي چه ټول زامن دَ بادشاه مړه دِي څکه چه امنون يوازي مړ
دي ۳۴ او ابيشالوم وتښتيده او هغه ځوان چه نګهبان وه سترګي ۳۴
خپلي يې پورته کړي و يې کتل او ګوره چه ډېر خلق په لار کښ
ورپسي دَ غره په لمن کښ راتلونکي دِي ۳۵ نو يوناداب بادشاه ته ۳۵
ووِ ګوره زامن دَ بادشاه راځي لکه چه ستا مريي وويل داسي
کېږي ۳۶ او داسي وشوه چه له خبري کولو نه وزګار شه نو ګوره ۳۶
چه زامن دَ بادشاه راغلل او آوازونه يې پورته کړل و يې ژړل او بادشاه
او ټول مريونو يې هم په ډېري لوي ژړا سره وژړل ۳۷ او ابيشالوم ۳۷
وتښتيده او تلماي بن عميهود بادشاه دَ جشور ته ورغي او داؤد
په ټولو ورځو کښ په هغه زوي ژړا کاوه
۳۸ او ابيشالوم وتښتيده او جشور ته لاړ او هلته دري کاله وه ۳۸
۳۹ او داؤد و ابيشالوم ته دَ ورتللو آرزومند شه څکه چه ده له ۳۹
امنون تسلي بيامونده ولي چه هغه خو مړ شوي وه ✣

# ثورلسم باب

۱ ۱ او يوآب خوي دَ ضرويه پوه شه چه دَ بادشاه زړه په ابيشالوم
۲ دَې ۲ نو يوآب تقوعه ته واستاوه او له هغه ځاي نه يې يوه دانا ښځه
راوستله او ورته وئي ويل چه ته ځان وِيرژلي کړه او اوس دَ وِير
جامې واغونده او په تيلو غوړول مه کوه بلکه دَ هغې ښځې په شان
۳ شه چه له ډيرو ورځو په مړي وِير کوي ۳ او بادشاه ته ورننه وزه
۴ او داسې خبره ورته وکړه او يوآب دَدي په خولې خبره کيښودله ۴ او
هغې تقوعې ښځې بادشاه ته وويل او پرمخ په زمکه پريوتله او سجده
۵ ئې وکړه او وئې ويل چه اې بادشاه مدد راکړه ۵ بادشاه ورته
وويل چه څه دِ شوي دي نو هغې ووِ په رښتيا چه زه کونډه ښځه
۶ يم او سړي مِ مړ دَي ۶ او ستا دَ وينځې دوه زامن وُو او په پټي
کښ سره وجنګيدل او هيڅ خلاصونکي دَ هغوي په مينځ کښ نه وه
۷ نو هغه يوه بل وواهه او مړ ئې کړه ۷ او کوره ټول ټبر ستا وينځې ته
پاڅيدلي دوي وائي چه هغه وهونکي دَ ورور خپل راکړه چه دَ هغه
دَ ورور په ځان چه ده قتل کړ او هغه وارث هم هلاک کړو نو
هغه بخري چه پاتې دي مړ به ئې کړي اونه به ځما وسړي ته نوم اونه به باقيه
۸ په زمکې پرېدي ۸ نو بادشاه هغې ښځې ته ووِ چه ته خپل کورته ورځه
۹ او زه به ستا په باب وفرمايم ۹ نو هغې تقوعي ښځې بادشاه ته
وويل چه ګناه دِ په ما باندِ او ځما دَ پلار په کور وِي اې خاوندَ
۱۰ بادشاه او دَده کرسي دِ پاکَ وِي ۱۰ نو بادشاه ورته وويل چه که
چا څه درته وَوِ نو هغه راوله او بيا به هغه زياتي ونه کړي چه
۱۱ تا ته لاس واچوِي ۱۱ او دي وويل اې بادشاه خپل خداوند الله يه
ياد کړه چه قصاصِي دَ خون خرابولو نه زياتيږي مسي نه چه زوي مِ
هلاک کړي نو ده وويل چه يهوه حي دَي ستا دَ زوي به يو

وینبنته هم په زمکه پرې نه وزِي ۱۲ بیا هغې ښځې ووېل چه ستا ۱۲
وینځه دِ خاوند بادشاه ته یوه خبره وکړِي ده ووېل خبره دِ وکړِي -
۱۳ نو هغې ښځې ووېل چه تا ولې دَ الله په اُمّت دَ داسې خبرې خیال ۱۳
کړې دَې او بادشاه دَ داسې خبرې وېونکې دې دَ ګرموال په شان په
دې چه بادشاه خپل جلاوطن بیرته نه راګرزوِي ۱۴ ځکه چه به مړیدلو ۱۴
کښِ مرکېږُو او دَ اوبو په شان یُوچه په زمکه توئیږِي او چه
نه ټولېږِي او الله ځان نه وکاږي په فکر سره فکر کوِي تاچه دَ ده
جلاوطنیان ورنه ونه شړلي شِي ۱۵ او زه اوس دلته راغلم چه ځما ۱۵
خاوند بادشاه سره خبره وکړم په دې باب کښِ ځکه چه خلقو
زه ووېرولم نو ستا وینځې ووېل چه زه خو له بادشاه سره خبره
کوم ګُندِ وِي چه بادشاه دَ خپلې نوکرې خبره واورِي ۱۶ ځکه چه ۱۶
بادشاه به واورِي تاچه خپله نوکره دَ هغه سړِي له لاس نه چه
ما او زوې مِې راسره دَ الله له میراث نه برباد کول غواړِي ۱۷ نو ستا ۱۷
وینځې ووېل چه خبرهِ دَ بادشاه خاوند ځما دِ په آرام کښِ وِي ځکه
چه لکه فرښته دَ الله دَ نیکئِ او دَ بدئِ په پېژاندلو کښِ دَه هسې
ځما خاوند بادشاه دې او خداوند ستا الله دِ له تا سره وِي -
۱۸ نو بادشاه هغې ښځې ته ځواب ورکړ و ئې ووېل چه ته رانه یوه خبره ۱۸
مه پټوه چه زه ئې درنه وپوښتم نو هغې ښځې ووېل چه بادشاه
خاوند ځما دِ اوس خبره وکړِي ۱۹ نو بادشاه وُوِ چه په دې ټولو ۱۹
کښِ دَ یوآب لاس له تا سره نشته څه ؟ نو هغې ښځې ځواب ورکړ
و ئې ووېل چه ستا ځان ژوندې دَې اې ځما خاوندَ بادشاه چه له
هرڅه چه ځما خاوند بادشاه وېلې دِي په ښي او په کینړ لوړِي ګرزېدل
نشته ځکه چه ستا مرِي یوآب و فرمائل او دا ټوله خبره ستا دَ
وینځې په خولې کښِ هغه راکړه ۲۰ ستا مرِي یوآب دَپارَ دَ مخ ګرزولو ۲۰
دَ کلام دا کار کړې دَې او خاوند ځما دانا دَې لکه دانائِي دَ فرښتې

۲۱ دَ الله چه هر څه چه په زمکه دِي پرِي پوهيږِي ۲۱ نو بادشاه يوآب
ته وويل گوره که نه ما داخبره کړِي دَه نو لاړ شه او ابيشالوم ځوان
۲۲ راوگرزوه ۲۲ نو يوآب پړمخ په زمکه پريوت او سجده ئي وکړه او بادشا
ته ئي مبارک ووايه او يوآب ووِ چه نن ورځ ستا غلام پوهيږِي چه
ما ستا په سترگوکښ نعمت موندلي دَي اي ځما خاوندَ بادشاهَ چه
۲۳ بادشاه کلام دَ مرِيِ خپل و مانه ۲۳ بيا يوآب پورته شه او جشور
۲۴ ته لاړ او ابيشالوم ئي اورشليم ته راووست ۲۴ او بادشاه وُوِ چه
خپل کورته دِ وگرزِي او مخ مِ دِ نه گورِي نو ابيشالوم خپل کورته
۲۵ وگرزيده او مخ دَ بادشاه ئي و نه ليد ۲۵ او لکه دَ ابيشالوم په تول
اسرائيل کښ څوک ښائسته سړي ډير صفتي نه وه له ورغوي دَ
۲۶ پښي نه ترککرئ پوري په ده کښ عيب نه وه ۲۶ او چه سر به ئي
خريه (او دَ هر کال په آخر کښ بد ده هغه خرايه ځکه چه وربانډِ
به درونه وه نو و به ئي خرايه) او چه دَده دَ سر ويښته به ئي تلل
۲۷ نو په بادشاهي تول به دوه سوه مثقاله کيدل ۲۷ او ابيشالوم لره
دري زامن وزيږيدل او يوه لُور ثامارد نوميده او هغه ښځه ښائسته
وه په ليدو کښ
۲۸ ۲۸ او ابيشالوم په اورشليم کښ دوه کاله اوسيده او دَ
۲۹ بادشاه مخ ئي و نه ليد ۲۹ نو ابيشالوم يوآب ته ورواستاوه چه
بادشاه ته ئي ورواستوِي مگر هغه نه غوښت چه ده ته ورشي بيا ئي
۳۰ بل وار ورواستاوه هغه نه غوښته چه ورشِي ۳۰ نو ده خپلو مريونو
ته وويل چه گورئ دَ يوآب پټي ځما دَ پټِي په څنگ کښ دَي او
دَده هلته کښ اوربشي دِي لاړ شئ په اور ئي وسوزوئ نو مريونو
۳۱ دَ ابيشالوم هغه پټيَ په اور وسوزاوه ۳۱ نو يوآب پورته شه او
د ابيشالوم کره ورغي او ورته وئي ويل چه ولي ستا مريونو ځما پټيَ
۳۲ په اور وسوزاوه ۳۲ نو ابيشالوم يوآب ته وُوِ گوره چه تاته مِ سړي

در واستاوه ویل مِ چه ته دلته راشه چه زه دِ بادشاه ته ورواستوم
او ته ورته ووایه چه زه له جشوره څله دلته راغلم ما له به بهتره
وه چه هلته کښ پاتې وَی نو اوس زه دَ بادشاه مخ وینم او که په ما
کښ گناه موندلې شِي نو وَ مِ دِ وژنِي ۳۳ نو یواب بادشاه له ورغي ۳۳
او خبر ئي کړ او چه ابشالوم ئي وباله نو دَي بادشاه ته راغي او په مخ ئي
په زمکه سجده وکړه دَ بادشاه دَ وړاندِ او بادشاه ابشالوم بښکل کړ؟

# پنځلسم باب

آ او پس له دي نه داسي وُو چه ابشالوم گاډِي او آسونه دَ خپل ځان ۱
دَپارَ تیار کړل او پنځوس سړِي چه دَده دَ وړاندِ به زغلیدل ۲ او ۲
ابشالوم به سحر وختي پاڅیده او دَ دروازي دَ لاري په څنگ کښ
به ودریده او داسي وشوه چه هر سړي چه څه دعویٰ به ئي وه
چه بادشاه ته به راته دَ عدالت دَپارَ نو ابشالوم به راباله او ورته به
ئي ویل چه ته دَ کوم کلي یي او هغه به ویل ستا مریي دَ اسرائیل
له یوي فرقي دي ۳ نو ابشالوم به ورته ویل گوره ستا کارونه ښه او ۳
راست دِي مگر ستاسو اوریدونکي نشته دَ بادشاه دَ وړاندِ ۴ بیا ۴
به ابشالوم ویل چه که زه چا په زمکه منصف کړم نو هر سړي چه
دَ هغه څه مقدمه او دعویٰ وي چه راتلي نو ما به ئي صداقت کاوه
۵ او داسي وه چه څوک به ورنژدي شه چه سجده ورته وکړي نو ده ۵
به لاس ور اوږد کړ او ور به ئي نیوه او ښکل به ئي کړه ۶ او ابشالوم ۶
له ټول اسرائیل سره داسي کار کاوه له هغو ټولو سره چه بادشاه
ته به دَ انصاف دَپارَ راتلل نو ابشالوم دَ اسرائیل دَ سړو زړونه
غلا کړل

۷ او دَ څلورم کال په آخر کښ داسي وشول چه ابشالوم بادشاه ۷
ته وویل پرِي مِ بږده چه لاړ شم او هغه نذر چه په حبرون کښ

٨ مِ خداوند ته منلي دَي ادا ئي كړم ٨ ځكه چه ستا مريي چه زه په
ارامي جشور كښ اوسيدلم په نذر كولو سره مِ نذر منلي وه چه
كه مِ خداوند اورشليم ته بيرته ورولي نو زه به دَ خداوند
٩ عبادت وكړم ٩ نو بادشاه ورته وويل په سلامتيا سره ورځه او
١٠ هغه پاڅيده او حبرون ته لاړ شه ١٠ او ابشالوم په ټولو فرقو دَ
اسرائيل كښ جاسوسان واستول ويل ئي چه تاسي آواز دَ تورنګ
١١ واورئِ او ووايئِ چه په حبرون كښ ابشالوم بادشاه شه ١١ او له
ابشالوم سره دوه سوه سړي له اورشليم نه چه بللي شوِي وُو په
١٢ تمامتوب سره لاړل او په هيڅ خبر نه وُو ١٢ او ابشالوم اخي توفل
هغه جلونئِ ته چه دَ داؤد وزير وه او له كلي دَ جلوه وه سړي
واستوه هغه وقت چه ده ذبحي ذبحه كولي او فتنه سخته كيد له
١٣ او اُمّت په تللو ته او زياتيده له ابشالوم سره ١٣ نو داؤد ته مخبر
راغي و ئي ويل چه دَ اسرائيل دَ سړو زړونه په ابشالوم پسي شوِي دِي
١٤ ١٤ نو داؤد هغو ټولو مريونو ته چه په اورشليم كښ ورسره وُو
وويل چه پورته شئِ چه وتښتو ځكه چه دَ ابشالوم له مخ نه مو
خلاصون نشته په تللو تلوار وكړئِ هسي نه چه ناڅاپه را ورسيږي
١٥ او بدِي را باندِ پريباسِي او ښهر دَ توري په مخ ووهِي ١٥ نو مريونو
دَ بادشاه بادشاه ته وُوِ هرڅه چه دَ خاوند بادشاه خوښه وِي
١٦ ګوره ستا مريونه يُو ١٦ نو بادشاه ووت او ټول كور دَده ورپسي او
١٧ بادشاه لس ښځي سُريتي دَكور دَ ساتني دَپارَ پريښوي ١٧ او بادشاه
١٨ ووت او ټول اُمّت ورپسي وه او په بيت مرحاق كښ ودريدل ١٨ او
ټول مريونه دَده په لاسونو تيريدل او ټول كريتي او ټول پليتي او ټول
جتيّانان شپږ سوه سړي له جت ورپسي وُو او دَ بادشاه په مخ كښ
١٩ تيريدل ١٩ نو بادشاه اتي هغه جتي ته وويل چه ته ولي له مونږ سره
هم تلونكي دروِمي ؟ وګرزه او له بادشاه سره پاتي شه ځكه چه ته

پردي يي او له خپل مقام نه هم جلاوطني يي ٢٠ پرون خو راغلي يي ٢٠
او نن به زه تا دي خوا هغي خوا ته له ځان سره ځندوم څه؟
او زه خو ځم چه چرته لاړم وګرزه او خپل ورونړه وګرزوه مهرباني
او حق دِ درسره وِي ٢١ نو اتيَ بادشاه ته ځواب ورکړ او وئې ويل ٢١
چه يهوه حيَ دےَ او ځما خداوند بادشاه ژوندي دےَ چه
په رښتيا سره په هغه مقام کښې چه ځما خاوند بادشاه هلته
وِي که مرګ لره وِي که ژوندانه لره نو هلته به ستا مريي وِي
٢٢ نو داؤد اتيَ ته وُوِ ورځه او پورې ووزه نو اتيَ جتيِ پورې وت ٢٢
او ټول سړي او ترپيدونکي تبه چه ورسره وه ٢٣ او ټولي زمکي ٢٣
په لوړ آواز سره ژړل او ټول اُمّت پورې وت او بادشاه دَ
قدرون په رود کښې پورې وت او ټول اُمّت دَ بيابان دَ لارې په مخ
پوريوت ٢٤ او ګوره صادوق هم او ټول لاويان ورسره پورته کونکي دَ ٢٤
عهد دَ صندوق دَ الله او صندوق دَ الله ئې کيښود او ابياتار وخوت
تر دې پورې چه ټول اُمّت له پورې وتلو له ښهر نه تير شول -
٢٥ نو بادشاه صادوق ته ووئيل چه صندوق دَ الله ښهر ته وجار باسه ٢٥
نو که زه دَ خداوند په سترګو کښې فضل بياموم نو هغه به ما
بيا وروِلي او دَي او دَ هغه آرامګاه به را ښکاره کړي ٢٦ او که دې ٢٦
داسي ووائي چه په تا کښې ځما خوښي نشته نو ګوره زه حاضر يم
هر څه چه دَده په سترګو کښې ښه وِي راسره دِ وکړي ٢٧ بيا بادشاه ٢٧
صادوق کوهن ته وُوِ چه باري ته غيب ليدونکي نه يې څه؟ ښهر
ته په سلامتيا سره وجاروزه ته او اخيمعض ځوي ستا او يوناتان
ځوي دَ ابياتار او ستا واړه زامن له تا سره ٢٨ ګورئ زه دَ ٢٨
بيابان په ګدرونو کښې ځنډيږم ترڅو چه له تاسي نه ځما دَ
خبرولو دَپاره خبر را نه شي ٢٩ نو صادوق او ابياتار صندوق دَ الله ٢٩
و اورشليم ته وجاريوست او دوي هلته پاتي شول

٣٠ ٣٠ او داؤد دَ زيتوڼ دَ خټ په ختنه وخوت او ژړل ئي سرئي
پټ وه او پښي ابلي ته او هلته ټول اُمّت چه ورسره وه هريوه
٣١ خپل سر پټ کړي وه او په ختلو ختل او ژړل ئي ٣١ او داؤد ته ئي
ښکاره کړل وئي ويل چه اخيتوفل په فتنه انګيزئ کښ له ابشالوم
سره دئ نو داؤد وُوِ اي خداوندَ دَ اخيتوفل مصلحت احمق کړه
٣٢ ٣٢ او چه داؤد دَ غره په سر راغي چه هلته به الله ته سجده
کيدله نو ګوره چه خوشئ مغه آرکي دَده استقبال ته راغي جامي
٣٣ ئي شليدلي او خاوري دَده په سر وي ٣٣ نو داؤد ورته وُوِ چه
٣٤ که ته راسره پوري شي نو په ما باندِ به بار شي ٣٤ ليکن که ته ښهر
ته وجاروزي او ابشالوم ته ووايي چه اي بادشاه زه به ستا مريي يم او ورانديې
ستا د پلار مريي وم او اوس ستا مريي يم نو ته به ما لره د اخيتوفل مصلحت وبرزوي
٣٥ ٣٥ آيا هلته له تا سره صادوق او ابياتار کوهينان نشته دي څه؟ نو هر څه چه
ته دَ بادشاه له کوره واوري نو په هغو صادوق او ابياتار کوهنانو
٣٦ ئي ښکاره کړه ٣٦ ګوره هلته له دوي سره دَ دوي دواړو ځامن
اخيمعض دَ صادوق او يوناتان د ابياتار دي نو تاسي دَ دغو دواړو
٣٧ په لاس ما ته هره خبره چه وائي ورئ را وائي ستوئ ٣٧ نو حوشئ ملګري
دَ داؤد ښهر ته ننه وت او ابشالوم اورشليم ته ننووت ۞

# شپاړسم باب

١ ١ او چه داؤد لږ څه دَ غره له سر نه پوري شه نو ګوره چه ضيبا
نوکر دَ مفيبوشت دَده دَ استقبال دَپارَ چه دوه خرونه زين کړي
او ورباندِ دوه سوه ډوډئ او سل ژنګوري دَ مويزو او سل ګکوري
٢ دَ انځيرو او يوژي دَ شرابو بار کړي وُو ٢ نو بادشاه ضيبا ته
وُوِ چه دا څه دِي؟ نو ضيبا وُوِ دا دوه خرونه دَ بادشاه دَ کور دَ
سورلئ دَپارَ او ډوډئ او انځير دَ نوکرانو دَ خوړلو دَپارَ او شراب

دَ هغو دَ ځنبلو دَپارَ چه په بیابان کښ ستړي ستومانه ؤِي ۳ نو ۳
بادشاه ووِیل چه ستا دَ خاوند زوي چرته دَي نو ضِیبا بادشاه ته
ووِیل ګوره هغه په اورشلیم کښ اوسِي ځکه چه دَي واِيي چه نن
ورځ به کور دَ اسرائیل ما ته څما دَ پلار بادشاهي را وګرزوِي
۴ نو بادشاه ضِیبا ته ووِیل ګوره دَ مفیبوشت چه هرڅه دِي ۴
هغه ستا دِي نو ضِیبا وُوِ زه درته سجده کوم چه ستا په سترګو
کښ اي خاونده بادشاه نعمت بیاموم ۵ او چه داؤد بادشاه بحوریم ۵
ته ورغي نو یو سړَي دَ شاؤل له کورنه راووت او شِمعي ئې نوم
وه زوي دَ جیرا او په تللو ته او لعنت به ئې وایه ۶ او داؤد او ټول ۶
مریونه دَ داؤد ئې په کاڼړو وویشتل او دَ بادشاه ټول اُمّت او ټول
بهادران دَده په ښِي او کیڼ څنګ کښ وُو ۷ او شِمعي په لعنت ۷
خپل کښ داسي ویل چه ځه ځه اي خوني سړّیه او دَ بلیعال
سړّیه ۸ خداوند ټولي وِیني دَ شاؤل دَکور چه ته ئې په ځاي ۸
بادشاهت کوي په تا در وګرزولي او خداوند بادشاهي ستا ابشالوم
ستا دَ زوي ولاس ته ورکړه او ګوره ته په خپلي بدئ کښ یي
ځکه چه ته خوني سړَي یي ۹ نو ابیشاي زوي دَ ځرویّه بادشاه ته ۹
وُوِ چه ولي دا مړ سپي څما خاوند بادشاه ته لعنت کوِي پوري به
شم او سر به ئې لري کړم ۱۰ نو بادشاه وُوِ چه اي دَ ځرویه زویه ۱۰
پما سو څه ؟ پري ئې ږده چه لعنت کوِي ځکه چه ده ته خداوند وِیلي
دِي چه په داؤد لعنت کوه او څوک به هغه ته ووايي چه ولي دِ
داسي وکړه ۱۱ او داؤد ابیشاي او خپلو ټولو مریونو ته وویل ګورئ ۱۱
څما زوي چه څما له کلمو پیدا شوي دي څما دَ ځان طلبګار دَي
نو اوس څومره زیات به دا بنیمیني نه کړِي څه ؟ پري ئې ږدئ لعنت
دِ کوِي ځکه چه خداوند ورته وِیلي دِي ۱۲ ګُندي خداوند څما په ۱۲
ذلّت نظر وکړِئ او دَده دَ دي ورځي لعنت کولو په عوض کښ نیکئ

راکړي ١٣ او داؤد او ده سړي په لاري تلل نو شمعي د غره په ډډه ١٣
کښې برابر ورسره په تللو ته او لعنت ئي کاوه او په کاڼو ئي ويشت
او په برابر ورسره ئي خاوري ورلوسني ١٤ او بادشاه او ټول اُمّت ١٤
چه ورسره وه ستړي ستومانه راغلل او هلته ئي سا واخسته *
١٥ او ابشالوم او ټول اُمّت سړي د اسرائيل اورشليم ته راغلل ١٥
او اخيتوفل ورسره وُه ١٦ او چه حوشاي ارکي ملګري د داؤد ابشالوم ١٦
ته ورغي حوشاي وويل ابشالوم ته چه بادشاه دِ ژوندي وِي
بادشاه دِ ژوندي وِي ١٧ نو ابشالوم حوشاي ته وُوِيل چه ستا په خپل دوست ١٧
دا مهرباني ده څه؟ ته ولي له خپل دوست سره لاړي ١٨ نو حوشاي ابشالوم ١٨
ته وُوِيل نه نه لېکن هغه څوک چه خداوند او دا اُمّت او ټول سړي
د اسرائيل ئي غوره کړي نو زه به د هغه يم او له هغه سره به اوسم
١٩ او دويم وار به زه د چا خدمت وکړم باري د هغه د زوي په مخ کښې ١٩
نه څه؟ لکه چه ستا د پلار په مخ کښې م خدمت وکړ هسي به ستا په
مخ کښې يم ٢٠ او ابشالوم اخيتوفل ته وويل چه ما ته مصلحت راکړه چه څه ٢٠
وکړو ٢١ نو اخيتوفل ابشالوم ته وُوِيل چه ته د خپل پلار و سريتو ته ور ٢١
ننوزه چه د کور د ساتني د پاره ئي پرېښي دي نو به ټول اسرائيل واوري
چه ته له خپل پلار نه نفرتي يي نو د هغو ټولو لاسونه چه درسره
دي مضبوط به شي ٢٢ نو هغوي ابشالوم ته په بام باندِ خيمه ودروله ٢٢
او ابشالوم د پلار سريتو ته د ټول اسرائيل په سترګو کښې
ورننه وت ٢٣ او د اخيتوفل مصلحت چه به هغو ورځو کښې به ٢٣
ئي ورکاوه داسي وه لکه چه د الله په کلام ئي سوال کاوه هم هسي
ټول مصلحتونه د اخيتوفل د داؤد او د ابشالوم په خدمت کښې وُو *

## اوه لسم باب

١ او اخيتوفل ابشالوم ته وُوِيل چه دولس زره سړي غوره کړم ١

۲ او پورته شم او په دي شپې کښ په داؤد پسي وزغلم ۲ او چه دي
ستړي او لاسونه ئي سُست وِي نو زه به پرې ورشم او وبه ئي ويروم
نو هغه ټول اُمّت چه ورسره دي وبه تښتي او يوازي بادشاه به
۳ ووهم ۳ او ټول اُمّت به تاته راولم هغه سړي چه ته ئي لټوي
۴ دَ ټولو دَ جاروتلو په شان دَي نو ټول اُمّت به سلامتي وِي ۴ نو دا
خبره دَ ابشالوم په سترګو کښ غوره شوه او په سترګو دَ ټولو
۵ سپين ږيرو دَ اسرائيل کښ ۵ نو ابشالوم ووِ چه حوشاي ارکي هم
۶ راوبوله چه مونږ واورُو چه هغه څه وائي ۶ نو چه حوشاي ابشالوم
ته ورغي نو ابشالوم ورته وويل چه اخيتوفل داسي خبره کړې دَه
۷ نو مونږ دَ هغه په شان وکړُو او که نه نو ته وايه ۷ نو حوشاي
ابشالوم ته وُوِ چه دغه مصلحت چه دا وار اخيتوفل پرې اشارت کړي
۸ دَي ښه نه دَي ۸ او حوشاي ووِ چه ته خپل پلار او دَده سړي
پيژني چه بهادران دِي او خاپونه ئي ترخه دِي لکه بوره يږه په بيټې
کښ او ستا پلار جنګي سړَي دَي او له اُمّت سره شپه نه تيروي
۹ ۹ او ګوره چه اوس به په يو غار کښ پټ وِي يا په کوم مقام کښ
به وِي او چه په هغوي پريوتونکي وِي په شروع کښ او اوريدونکيَ
واورِي نو به وائي چه په هغه اُمّت کښ چه په ابشالوم پسي وه
۱۰ ماتي وشوه ۱۰ هم هغه زوي دَ قوّت چه زړه ئي دَ زمري دَ زړه په شان
دَي په ليدلو به ويلي شي ځکه چه ټول اسرائيل پوهيږي چه ستا
۱۱ پلار جبّار دَي او هغه چه ورسره دِي زلمن دَ قوّت دِي ۱۱ دي دَپاره
زه تاته مصلحت درکوم چه تاته دِ ټول اسرائيل په جمع کيدلو
درجمع شي له دان تر بير شبع پورې لکه هغه شګې چه په دريا
کښ په کثرت سره دِي او چه حضرت په صيخ کښ تلونکي َ ځي
۱۲ ۱۲ او مونږ به په هغه مقام کښ چرته چه هغه هلته مُندلي وِي
ورشُو او لکه شبنم چه په خاوري پريوزي مونږ به پرې ور پريوزُو

او نه به دیَ او نه به له هغو ټولو سړو نه چه ورسره دِي یو هم
١٣ پرېږدُو ١٣ او که په کوم ښهر کښ ننوتلي وِي نو به ټول اسرائيل
بیاستي واخلِي او هغه به رود ته راکاږي څو چه هلته کښ یوه کټه
١٤ هم باقِي پاتِي نه شِي ١٤ نو ابشالوم او ټولو سړو دَ اسرائيلو وُوِ چه
مصلحت دَ حوشاي ارکِي دَ اخيتوفل له مصلحتَ ښه دیَ ځکه چه
خداوند دَ اخيتوفل ښه مصلحت په باطلولو مقرّر کړي وه تا چه
١٥ خداوند په ابشالوم بلا نازله کړي ١٥ نو حوشاي صادوق او ابياتار
کوهينانو ته وُوِ چه اخيتوفل داسې او داسې مصلحت ابشالوم او
دَ اسرائيل سپين ږيريو ته ورکړي دَي او ما داسې او داسې مصلحت
١٦ ورکړ ١٦ نو اوس زر څوک ورواستوئِ او داؤد ته څرګندوئِ ور ته
ووايئِ چه ته دا شپه دَ بيابان په ميدانونو کښ تيره مه کوه بلکه په
پوري وتلو سره پوري شه هسې نه چه بادشاه او هغه ټول
١٧ اُمّت چه ورسره دیَ ونغړدلي شِي ١٧ او يوناتان او اخيمعض په
عينَ روجل کښ ودريدونکي وُوْ نو يوه وينځه ورغله او هغوي
ئِي خبر کړل او هغوي لاړلَ او داؤد بادشاه ئِي خبر کړ ځکه چه
دوي نه توانيدل چه دَ ښهر په ننه وتلو کښ ځانونه ظاهر کړِي
١٨ ١٨ نو دوي يو هلک وليدل او ابشالوم ئِي خبر کړ نو دوي دواړه
زر دَ يو سړي کره په بحوريم کښ لاړل او دَ هغه په غولِي کښ
١٩ يو کوهيَ وه او دوي هلته کوز شول ١٩ او ښځې يوه پړده واخسته
دَ کوهِي په خولِي ئِي وغوړوله او په هغه ئِي اوړه وغوړول او هغه
٢٠ کار معلوم نه شه ٢٠ نو غلامان دَ ابشالوم دَ هغي ښځې کور ته ور غلل
وئِي ويل چه اخيمعض او يوناتان چرته دِي او هغي ښځې ور ته
وُوِ چه دَ اوبو له لښتِي نه تېر شوِي دِي او چه وئِي لټول او وئِي
٢١ نه موندل نو اورشليم ته وګرزيدل ٢١ او پس دَ هغو له تلو نه
له کوهِي نه راووتل او لاړل او داؤد بادشاه ئِي خبر کړ او داؤد

ته يې ووِ پورته شيِ او زر له اوبو پوري وزيِ ځکه چه اخي توفل
۲۲ په تاسي داسي مصلحت کړي دي ۲۲ نو داؤد او هغه ټول سړي چه
ورسره وُو پاځيدل او له اردن نه پوري وتل او تر رڼا دَ صباح
۲۳ پوري يو پاتې نه شه چه تر اردن پوري نه شه ۲۳ او اخي توفل
هرکله چه وليدل چه دَده په مصلحت عمل ونه شه نو په خره يې
زين وتاړه او سور شه او خپل کورته او ښهرته لاړ او خپل
کورته يې وصيت وکړ او خپل ځان يې خپه کړ او مړ شه او دَ
خپل پلار په قبر کښې ښخ کړي شه

۲۴ ۲۴ او داؤد محنايم ته ورغي او ابشالوم له اردن پوري وت
۲۵ دی او ټول سړي دَ اسرائيل له ده سره ۲۵ او ابشالوم دَ يواب په
بدل کښې عماسا په لښکر باندِ ودراوه او عماسا زوي دَ يوه اسرائيلي
سړي يثرا نامي هغه چه ابيجيل لور دَ ناحاش خور دَ ځرويه مور دَ
۲۶ يواب ته ورننه وت ۲۶ او ابشالوم او اسرائيل په جلعاد کښې ډيره
۲۷ وکړه ۲۷ اوچه داؤد محنايم ته ورغي نو داسي وشول چه شوبي زوي
دَ ناحاش له ربه بن عمون او ماکير زوي دَ عميئيل دَ لودبار نه او
۲۸ برزلائي هغه جلعادي له روجليم نه ۲۸ کټونه او کالي دَ خاورو او
غنم او اوربشي او اوړه او نيني او دَ لوبياؤ پلي او عدس او نيني
۲۹ کړي چنړي ۲۹ او شهد او کُچ او کډوري او پنير دَ غواؤ يې داؤد ته
او هغه اُمّت ته چه ورسره وه راوړل چه وئي خوري ځکه چه دوي وُوِ
چه داخلق په بيابان کښې وږي او ستړي او تږي دِي *

# اتلسم باب

۱ ۱ او داؤد هغه اُمّت چه ورسره وه وشماره او په هغوي دَ
۲ زرکونو سرداران او دَ سلکونو سرداران ودرول ۲ او داؤد يوه
دريمه دَ اُمّت دَ يواب لاس ته واستوله او يوه دريمه په لاس دَ

ابیشَايَ زوي دَ ضرویَه وروردَ یوآبَ او یوه دریمه په لاس دَ اتائيِ
جِتيّ او بادشاه اُمّت ته وُوِچه زه به هم له تاسو سره ووزمِ
۳ ۳ نو اُمّت وُوِ چه ته مه ووزه ځکه چه که مونږ په تښتیدلي
سره و تښتُو نو هغوي مونږ هیڅ نه گنړِي او که څمونږ نیم مړه
شِي نو هم مونږ هیڅ نه گنړِي او اوس ته څمونږ دَ لسو زرو په
شان يي نو اوس ښه دا دَه چه ته له ښهرَ څمونږ مددگار يي -
۴ ۴ نو بادشاه ورته وویل چه هر څه چه ستاسي په سترگو کښ
ښه وِي هغه به کوم نو بادشاه دَ دروازي په څنگ کښ ودریده
۵ او ټول اُمّت په سلگونو او په زرگونو ووتل ۵ او بادشاه یوآبَ ته
او ابیشَايَ او اتائيَ ته وفرمایل او وئي ویل چه تاسي دَ ابشالوم
ځوانَ په باب څما په خاطر نرمِي وکړئِ اوچه بادشاه دَ ابشالومَ په
۶ حق کښ وفرمایل ټول اُمّت واوریدل ۶ اوخلق دَ اسرائیلَ مخي
۷ ته ورشو ته ووتل او دَ افرائیمَ په ځنگل کښ جنگ وه ۷ او په
هغه ځاي کښ دَ اسرائیلَ اُمّت دَداؤد دَ مرِيي له وړاندِ نه شکست
۸ وخوړ او په دغي ورځي کښ هلته لویه وهنه وه دَ شلو زرو ۸ او
هلته په مخ دَ ټولي زمکي جنگ تار په تار شه او هغوي چه له اُمّتَ
ځنگل وخوړل له هغو نه زیات وُوچه په دغي ورځ کښ توري وخوړل
۹ ۹ او ابشالوم دَداؤد مریونو ته مخامخ شه او ابشالوم په کچر سور
وه نو کچر دَ لوي بلوط دَ گورو ښاخونو دَ لاندِ ننوت او سر ئي په
بلوط کښ ونښت او دَ آسمان او دَ زمکي په مینځ کښ ځوړند
۱۰ کړي شه او هغه کچر چه دَده دَ لاندِ وه تیر شه ۱۰ نو یوه سړِي
ولید او یوآبَ ئيُ خبر کړ او وئي ویل چه گوره ما ابشالوم ولید
۱۱ چه په بلوط کښ ځوړند وه ۱۱ او یوآبَ هغه سړِي ته چه دېَ ئيُ
خبر کړ وُوِ او گوره تا هغه ولید نو هلته دِ ولي په زمکه ونه وُیشت
۱۲ چه ما به تا ته لَسْ دَ سپینو زرو او یو کمربند درکړي وُو ۱۲ نو

هغه سړي يوآب ته وُوِ چه که څما په لاسونو کښې زر دَ سپينو زرو
وتلي نو هم ما به هيڅ‌ري لاس دَ بادشاه زوي ته ور اوږد کړي نه وه
ځکه چه بادشاه څمونږ په غوږونو کښې تا ته او ابيشاي ته او اِتّاي
ته وفرمايل و ئي ويل چه څما په خاطر دِ هر څوک په هغه ځوان
۱۳ ابشالوم نرمي وکړي ۱۳ او که نه نو ما به په خپل ځان فريب کړي وه
ځکه چه له بادشاه نه هيڅ پټ نشته او تا به ځان خپل څما په خلاف
۱۴ ودرولي وه ۱۴ نو يوآب ووئيل چه زه به دا هسې ستا په مخ صبر
ونه کړم نو درې شلګئ ئي په خپل لاس کښې واخستلي او دَ ابشالوم
په زړه کښې ئي ور و منډلي او هغه لا تر اوسه پورې په بلوط کښې
۱۵ ژوندي وه ۱۵ او لس ځوانانو چه دَ يوآب وسله وړونکي وُو ابشالوم
۱۶ ئي ګير کړ او وئي واهه او مړ ئي کړ ۱۶ او يوآب تورنګ وغږاوه نو
اُمّت دَ اسرائيل له ورستو را وګرزيده ځکه چه يوآب اُمّت ونيوه
۱۷ ۱۷ او ابشالوم ئي واخست او په ځنګل کښې ئي په لوي ډوغل کښې
وغورزاوه او له کاڼو يو بې‌حده لوي ډيري ئي ورباندِ ودراوه او
۱۸ ټول اسرائيل و تښتيدل هر يو خپلي کيږدي ته ۱۸ او ابشالوم په
خپل ژوندانه کښې يوه ستن دَ بادشاه په خوړ کښې اخستلي وه
او دَ خپل ځان دَپارَ ئي ودرولي وه ځکه چه ده ويل چه دَ خپل
نوم دَ يادګارئِ دَپارَ زوي نه لرم او هغه ستنه ئي په خپل نوم
وبلله او تر نن ورځې هغه په ابشالوم بللي شي
۱۹ ۱۹ نو صدوق زوي اخيمعص وُوِ چه و به زغلم چه په
بادشاه زيرې وکړم چه خداوند دَ ده له دُښمنانو نه دَ ده انصاف
۲۰ کړي دَي ۲۰ نو يوآب ورته وُوِ چه ته نن ورځ دَ زيري سړيَ نه يې
ليکن ته به په بله ورځ زيري وکړې او نن ورځ به ته زيري نه کوې
۲۱ دې دَپارَ چه دَ بادشاه زوي مړ شوي دَي ۲۱ او يوآب کوشي ته
ووئيل چه لاړ شه اوګوره چه دِ ليدلي دي بادشاه ته څرګند کړه

۲۲ نو کوشي يوآب ته سجده وکړه او وزغليده ۲۲ بيا اخيمعض زوي
دَ صادوق يوآب ته وُوِ چه هرڅه چه وِي زه په هغه کوشي پسې
وزغلم نو يوآب وُوِ چه اي زويه ته ولي زغلې چه تا له بخشش دَ زيري
۲۳ نشته ۲۳ ده وُوِ هرڅه چه وِي وبه زغلم هغه ورته ووېل وزغله
نو اخيمعض دَ ميدان په لارې وزغاښت او له کوشي نه وړاندِ شه
۲۴ ۲۴ نو داؤد دَ دوارو دروازو په مينځ کښې ناست وه او څوکيدار
دَ دروازي دَ بام په ديوال باندِ وخوت او سترګي ئې پورته کړي
۲۵ او وئې کتل او ګوره چه يو سړي يواځي رازغلي ۲۵ نو څوکيدار غږ
وکړ او بادشاه ئې خبر کړ نو بادشاه وُوِ چه که يوازي وِي نو دَده
۲۶ په خولې کښې زيري دي او راتلونکي راتَه او رانږدي کيده ۲۶ بيا
څوکيدار بل سړي وليده چه رازغليده نو څوکيدار دروانځي ته غږ
وکړ او وئي ويل ګوره يو سړي يوازي رازغلي او بادشاه وُوِ چه
۲۷ دا هم زيري کونکي دَي او څوکيدار وُوِ چه زه وينم چه دَ وړنبي
زغليدنه دَ اخيمعض زوي دَ صادوق دَ زغليدنې په شان دَه نو
۲۸ بادشاه وُوِ چه دا نيک سړي دَي او په نيک زيري راځي ۲۸ نو
اخيمعض بادشاه ته غږ وکړ وئي ويل چه سلام او بادشاه ته ئي
مخ په زمکه سجده وکړه او وئي ويل چه خداوند ستا الله مبارک
دَي چه هغه سړي چه څمونږ په خاوند بادشاه ئې لاسونه پورته
۲۹ کول سپارلي دِي ۲۹ نو بادشاه وُوِ چه ابشالوم ځوان سلامت دَي څه
نو اخيمعض وُوِ چه ما يو لوي اژدهام وليد چه يوآب سړي دَ بادشاه
۳۰ او سړي ستا ئې راواستاوه ليکن نه پوهيدم چه څه وشول ۳۰ نو
بادشاه ورته وُوِ وګرزه او دلته ودرېږه او هغه وګرزيده او
۳۱ ودريده ۳۱ او ګوره چه کوشي راغي او کوشي وُوِ چه څما خاوند بادشاه
ته دِ زيري وِي څکه چه خداوند نن ورځ دَ هغو ټولو له لاسونو نه
۳۲ چه ستا په مخالف ودريدل انتقام واخست ۳۲ او بادشاه کوشي

ته وُوِ چه ابشالوم ځوان سلامت دئ؟ نو کوشي وُوِ چه ځما دَ
خاوند بادشاه دُښمن او هغوي ټول چه په تا دَ بدئ دَپارَ پورته
کيږي دَ هغه ځوان په شان دِ شِي ٣٣ نو بادشاه ډير دلګير شه ٣٣
او دَ هغي دروازي وکوټي ته خوت او ژړل ئي او په خپلو تللو
کښ ئي داسي ويل اي ځما ابشالومَ زويه اي ابشالومَ ځويه ځما
زويه اي کاشکي چه زه ستا په بدل مړ وَي اي ځما زويه ابشالومَ
اي ځما زويه ❊

# نولسم باب

١ نو يوآب ته خرګنده کړي شوه چه ګوره بادشاه په ابشالوم ژړا ١
او ويرَ کوي ٢ او په هغي ورځي فتح په وير بدله شوه دَ ټولو خلقو ٢
دَپارَ ځکه چه خلقو په دغي ورځي کښ واوريدل چه بادشاه په
خپل زوي غم کوي ٣ او اُمت په دغي ورځي په غلا سره ښهر ته ٣
ننه وتل لکه هغه اُمّت چه په جنګ کښ په خپلو تښتيدلو شرمنده
وي په غلا دروِمي ٤ او بادشاه خپل مخ پټ کړ او بادشاه په لوي ٤
آواز سره ناري وهلي اي ځما زويه ابشالومَ اي ابشالوم ځما زويه
ځما زويه ٥ نو يوآب دَ بادشاه کره ورننوت و ئي ويل چه تا نن ٥
ورځ مخونه دَ ټولو مريونو خپلو چه ستا دَ ځان او ستا دَ زامنو
او ستا دَ لونړو دَ ښځو او ستا دَ ښځو او ستا دَ سريتو دَ ځانو
خلاصونکي دي شرمنده کړي دي ٦ په دي چه ته له خپلو نفرت کونکو ٦
سره محبّت کوي او له خپل محبّت کونکو نفرت کوي ځکه تا نن ورځ دا
ظاهره کړه چه تا ته سرداران او مريونه هيڅ نه ښکاريږي او زه نن
ورځ پوه شوم چه که ابشالوم ژوندي وي او مونږ ټول نن مړه وي
نو هم هغه کار به ستا په سترګو کښ راست وه ٧ نو اوس پورته ٧
شه او ووزه او دَ خپلو مريونو زړونه خوشحال کړه ځکه چه زه په
خداوند قسم کوم که چري ته و نه وزي نو نن شپه به يو له تا

سره تېره نه کړي او دا به تا له ډېره بده وي له ټولي بدئ نه چه
٨ تاته له وقت دَ وړکوالي نه تر اوسه پوري رسيدلي ده ٨ نو بادشاه
پورته شه او په دروازي کښې کښيناست نو ټول اُمّت ئي خبر کړ
چه ګوره بادشاه په دروازي کښې ناست دئ نو ټول اُمّت دَ بادشاه دَ
٩ دَ وړاندې راغي ٩ او اسرائيل هر يو خپلي کېږدي ته وتښتيده او ټول
اُمّت دَ ټولو فرقو دَ اسرائيل په جګړو کښې وُو ويل ئي چه بادشاه
موږ ځمونږ دَ ذښمنانو له لاسونو خلاص کړو او ده دَ فلسطيانو
له لاسه آزاد کړو او اوس خو دَ ابشالوم له سببه له زمکي نه وتښتيده
١٠ ١٠ او ابشالوم چه په موږه مو مسح کړ په جنګ کښې مړ شه او اوس
تاسي دَ بادشاه له بېرته را وستلو ولي چپ کيږئ
١١ ١١ او داؤد بادشاه صادوق او ابياتار کوهينان واستول وئي ويل
چه سپين ږيرو دَ يهودا ته ووايئ چه تاسي ولي په بېرته راوستلو
دَ بادشاه کښې وکورخپل ته ډيل کوئ سره دَ دي چه خبره دَ ټول
١٢ اسرائيل دَ بادشاه کور ته راغلي ده ١٢ تاسي خو ځما ورونړه يئ تاسي
ځما هډوکي او غوښه يئ نو تاسي ولي په بېرته راوستلو دَ بادشاه کښې
١٣ خپل کور ته ډيل کوئ ١٣ او تاسي عماسا ته ووايئ چه ته ځما هډوکي
او غوښه بي هم هسي به اَللّٰه له ما سره وکړي او له هسي نه دې
زيات وکړي که ته سردار دَ لښکر ما ځخه ټولي ورځي په بدل دَ
١٤ يوآب کښې نه شي ١٤ نو ده زړونه دَ يهودا دَ سړيو دَ يوه سړي
په شان را وګرزول نو دوي بادشاه ته واستاوه وئي ويل ته او
١٥ ستا ټول سړيونه دې را وجاروزي ١٥ نو بادشاه را وجاروت او اردن
ته راغي او ټول يهودا جلجال ته راغلل دَ بادشاه دَ ملاقات دَپاره
تاچه بادشاه له اردنه را پوري باسي
١٦ ١٦ نو شمعي زوي دَ جيرا بنياميني چه دَ بحوريم وه شتابي وکړه
او دَ يهودا دَ سړو سره دَ داؤد بادشاه ملاقات ته ورکوز شه -

١٧ او له هغه سره زر سړي له بنيامينَ او ضيبا نوكر دَ كور دَ ١٧
شاؤل او پنځلس زامن دَده او شل مريونه دَده ورسره وُو
نو دوي دَ بادشاه دَ وړاندِ له اردنَ پوري وتل ١٨ او يوه بيړيۍ پوريو تله ١٨
دَ بادشاه دَ كور دَ پوري يستلو دَپارَ او دَ هغه كار دَپارَ چه
دَده په ستړكو كښ ښه وِي او شمعِي زوي دَ جيرا دَ بادشاه دَ
وړاندِ پريوت چه له اردنَ پوري كيده ١٩ او بادشاه ته ئې ووِيل ١٩
چه بادشاه دِ په ما گناه نه حسابوِي او نه هغه چه ستا مريي
برعكسِي وكړه هغه ورځ چه ځما خاوند بادشاه له اورشليم نه
ووت په ياد دِ ئې نه راوړِي ځوچه په زړه كښ بادشاه دغه كيږدِي
٢٠ چه ستا مريي پوهيږِي چه ما خطا كړِي دَه او گوره چه زه نن ٢٠
ورځ دَ يوسفَ له ټوله كوره وړنبي راغلي يم چه ځما دَ خاوند
بادشاه استقبال ته راكوز شوي يم ٢١ نو ابيشايَ زوي دَ ضرويه ٢١
ځواب وركړ و ئې وِيل چه شمعِي دِ دَدي دَپارَ مړ نه شِي څه ؟
ځكه چه دَ خداوند مسيح ته ئې لعنت كړِي دِيَ ٢٢ نو داؤد وُوِ ما ٢٢
او تاسو لره څه دِي دَ ضرويه زامنو تاچه تاسي نن ورځ ځما سِتم
ءكړِئِ ؟ نن ورځ دِ يو سړيَ به اسرائيل كښ مړ كړِي شِي څه ؟
زه نه پوهيږم څه ؟ چه نن ورځ په اسرائيل بادشاه يم ٢٣ او بادشاه ٢٣
شمعِي ته وُوِ ته دِ مړ نه شي او بادشاه ورسره قسم وكړ
٢٤ او مفيبوشثَ زوي دَ شاؤل دَ بادشاه ملاقات ته راكوز ٢٤
شه او له هغي ورځي چه بادشاه لاړ تر دي ورځي پوري چه په
سلامتيا سره راغي نه ئې پښي تياري كړِي او نه ئې ږيره جوړه كړِي
وه او نه ئې جامي وينځلي وي ٢٥ نو چه اورشليم ته دَ بادشاه ٢٥
ملاقات له ورغي بادشاه ورته وُوِ چه ته ولي اي مفيبوشثَ راسرُه
لانه ړي؟ ٢٦ ده وُوِ اي بادشاه خاونده ځما چه نوكر مِ و تكلم ځكه ٢٦
چه ستا بنده وُوِ چه ځما دَپارَ خر زين كړه چه زه پرِ سور شم

او له بادشاه سره لاړ شم څکه چه ستا مريي ګډ دې ۲۷ او هغه ۲۷
ستا په غلام باندِ څما دَ خداوند بادشاه دَ وړاندِ پلمه وکړه او څما
خاوند بادشاه لکه فرښته دَ الله دې نو هرڅه چه ستا په سترګو
کښ ښه وِي هغه وکړه ۲۸ څکه چه ټول کور څما دَ پلار څما دَ خاوند ۲۸
بادشاه دَ وړاندِ دَ مړو سړو په شان وه ليکن تا مريي خپل دَ
خوراک کونکو په مينځ کښ په خپلي خوانچي کښيناوه نو څما دَ پارَ اوس
څه حق دې چه بيا بادشاه ته ناري وکړم؟ ۲۹ نو بادشاه ور ته ۲۹
وُوِ چه اوس څله ته دَ خپلو کارونو خبري کوي ما خو ويلي دِي چه
ته او ضيبا ورشُو وويشئِ ۳۰ نو مفيبوشث بادشاه ته وُوِ چه اوس ۳۰
دِ هغه ټول واخلي پس له دي چه خاوند څما بادشاه په سلامتيا
سره خپل کور ته راغي

۳۱ او برزلي جلعادي له روجليم نه راکوز شه او له بادشاه ۳۱
سره له اردن پوريوت تاچه په اردن ئې واستوي ۳۲ او برزلاي ډير ۳۲
زوړ وه دَ اتيا کالو وه او چه بادشاه په محنايم کښ تکاؤ وه هغه
رزق ورووړي وه څکه چه دې بيحده لوي سړي وه ۳۳ نو بادشاه ۳۳
برزلاي ته وويل چه ته له ما سره پوري شه او په اورشليم کښ
به درته زه رزق ورسوم ۳۴ نو برزلاي بادشاه ته وُوِ چه څو ورځي ۳۴
دَ کالونو دَ ژوندون به مِ وِي چه له بادشاه سره اورشليم ته وخيژم؟
۳۵ زه خو نن ورځ دَ اتياؤ کالو يم او زه په نيک او بد کښ تميز ۳۵
کولي شم څه؟ او ستا بنده دَ هغه څه چه خوري او څښي ئې
خوند ئې اخستلي شي څه؟ او يا خو زه دَ سرودپانو او دَ سندريولو
آواز آوريدلي شم څه؟ او څه دَ پارَ دِ ستا مريي په خپل خاوند
بادشاه بار شي ۳۶ ستا مريي دِ لږ څه بادشاه سره تر اردن پوري ۳۶
خو لاړ شي که نه او څه دَ پارَ بادشاه په دي بدلي سره بدله راکوي
۳۷ ستا مريي دِ وجاروزي چه په خپل ښهر کښ مړ شي دَ خپل ۳۷

پلار او دَ خپلې مور قبر ځنه او کوره ستا مرېي کمهام ځما له
خاوند بادشاه سره پورې وزي نو ته له ده سره هغه وکړه چه
۳۸ ستا په سترګو کښې ښه وِي ۳۸ نو بادشاه ځواب ورکړ چه کمهام
به راسره پورې ځي او زه به له ده سره هغه وکړم چه ستا په سترګو
کښې ښه وِي او هر څه چه ته رانه وغواړې زه به ئې تا لره وکړم
۳۹ ۳۹ نو ټول اُمّت له اردنَ پورې وتل او بادشاه پورې شه او بادشاه
بزرلای ښکل کړ او برکت ئې ورکړ او هغه خپل مکان ته وګرزېده
۴۰ ۴۰ او بادشاه جلجال ته پورې شه او کمهام ورسره پورې
شه او ټولو خلقو دَ یهودا بادشاه پورې کړ او داسې نیم قوم
۴۱ دَ اسرائیل هم ۴۱ او ګوره چه ټول سړي دَ اسرائیل بادشاه ته
راغلل او بادشاه ته ئې ووِې چه څه دَپارَ ځمونږ ورور یهودا په
غلا بیولې یې او بادشاه او دَده کور او ټول سړي دَ داؤد ئې
۴۲ ورسره له اردنَ را پورې کړل ۴۲ نو ټولو سړو دَ یهودا دَ اسرائیل
سړو ته ځواب ورکړ چه بادشاه خو مونږ ته را نژدې دَې او تاسې
په دې کار ولې سوځئ مونږ له بادشاه نه څه په خوړلو خوړلې دِي
۴۳ یا مونږ ته ئې څه په بخښنه را بخښلي دِي ۴۳ نو دَ اسرائیل سړو
دَ یهودا سړو ته ځواب ورکړ و ئې ویل چه مونږ لره په بادشاه
کښې لَس نسبتَ دِيْ نو ځمونږ حق له تاسې نه په داؤد زیات دي
نو تاسې ولې سپک کړو او ورنبې مو له مونږ سره دَ بادشاه په بېرته راوستلو
کښې خبره و نه کړه؟ اودَ یهودا دَ سړو خبره له خبرې دَ اسرائیل له سړو
نه سخته وه ❊

# شلم باب

۱ آ او اتّفاقاً هلته یو بلیعال سړي نوم ئې شبع زوي دَ بکرِي
بنیامینِي سړي وه او تورنګ ئې ووَاهه و ئې ویل چه ځمونږ په
داؤد کښې برخه نشته او دَ یسِّي په زوي کښې میراث نه لرو اي

۲ اسرائیلَ هر یو خپلي کیږدۍ ته ځي ۲ نو هر یو دَ داؤد له پیروۍ
نه په شبعَ زوي دَ بکرِي پسي وخوت او سړي دَ یهوداَ له
۳ خپل بادشاه سره له اردنَ تر اورشلیم پوري نښتلي وُو ۳ او
داؤد په اورشلیم کښ خپل کورته ورغي او بادشاه هغه لسَ
سُریتي چه دَ کور دَ ساتني دپارَ ئي پرېښي وي واخستلي دَ حفاظت
کور ئي ورکړ او رزق ئي ور رساوه لیکن ورننه نه وت بلکه دَ
مرګ تر ورځي پوري بندیانئ وي په کُندهتوب کښ ئي ګذران کاوه ‎٭
۴ ۴ او بادشاه عماسا ته وُوِ چه ما ته دَ یهوداَ سړي په دري ورځي
۵ کښ رابلول کړه او دلته راحاضر شه ۵ نو عماسا لاړ شه چه
یهوداَ جمع کړي لیکن ده له هغه وقت نه چه مقرّر کړي ئي وه
۶ ډیل وکړ ۶ نو داؤد ابیشاي ته ووېل چه اوس موږ له شبعَ
زوي دَ بکرِي به له ابشالوم نه زیاته بدي وکړي نو ته دَ خپل
خاوند سړیونَ واخله او ورپسي شه تاچه دَ خپل ځان دپارَ مضبوط
۷ ښهرونه وانه خلي اوځموږ له سترګو غائب شي ۷ او دَ یواب سړي
ورپسي ووتل کریتي او فلیتي او ټول بهادران له اورشلیم نه
۸ ورپسي ووتل چه په شبعَ زوي دَ بکرِي پسي شي ۸ او چه هغه
لوي کڼ ځخه وُو چه په جبعون کښ دیَ عماسا دَ دوي مخي ته
ورغي او یواب په هغي جامي چه آغوستلي ئي وي ملا تړلي وه او
دَپاسَ پرِ ښکي دَ توري په تیکي تر ملا تړلي وه او چه دي ووت
۹ نو هغه ورته پریوته ۹ نو یوابَ عماسا ته وُوِ اي ورورہ ته په
خیر سره یي ؟ او یواب په ښي لاس دَ عماسا ږیره ونیوله چه
۱۰ ښکل ئي کړي ۱۰ او عماسا له هغي توري چه دَ یواب په لاس کښ
وه خبرداري ونه کړه نو په ګیډي کښ ئي وواهه چه کُلمي ئي
زمکي ته توي کړي او بل ګذارئي پرِ ونه کړ او مړ شه او یواب
۱۱ او دَده ورور ابیشاي په شبعَ زوي دَ بکرِي پسي تلل ۱۱ او هغه

ځکه يو له نوکرانو دَ يوآبَ ودريده وئي ويل هرڅوک چه په يوآبَ
خوشحالِي کوي او څوک چه دَ داؤدَ دَيارَ وِي په يوآبَ پسي به ځِي-
۱۲ او عماسا په شاه راه کښِ په وينو کښ رغړيدونکي وه او چه هغه ۱۲
په سړِي ليده نو ټول امّت به ورته ودريده نو عماسا ئي له شاه راه
نه و پټي ته يوور او څادر ئي پرې واچاوه ځکه چه هغه ولېدل
چه هرڅوک چه به ورباندِ رانه نو ورته به ودريده ۱۳ نو چه له ۱۳
شاه راه نه يوورلي شه نو هر سړَي په يوآبَ پسي روان شه چه په
شبعَ زوي دَ بکرِي پسي ځِي ۱۴ او په ټولو فرقو دَ اسرائيل کښِ تير ۱۴
شه تر ابلَ او بيت معکه پورې او تر ټولو بيريانو او هغوي هم جمع شول
او ورپسي ووتل ۱۵ او راغله او هغه ئي په ابلِ بيت معکه کښِ قلعه بند ۱۵
کړ او له ښهرَ چاپيرِه ئي مورچه ودروله دَ قلا په برابر او هغه ټول
اُمّت چه له يوآبَ سره وه دَ ديوال نړونکي او نيست کونکي وه ۱۶ نو يوې ۱۶
دانا ښځي له ښهرَ ناري کړي چه واوريئِ واوريئِ يوآبَ ته ووايئِ چه دلته
رانژدې شِي چه زه خبره ورته وکړم ۱۷ نو هغه ور نژدې شه او هغې ۱۷
ښځي ورته وويل چه يوآبَ ته يې ده وويل زه هغه يم نو دې ورته
وويل چه دَ خپلِي نوکرِي خبره واوره او هغه وويل چه زه آوريدونکي
يم ۱۸ نو دې خبره وکړه وئي ويل چه په اول کښِ به ئي دا خبره ۱۸
په خبرِه کوله ويل به ئي چه دوي به په آبل کښِ په سوال سره
سوال وکړِي او دا هسي به ئي هغه کار تمام کاوه ۱۹ زه په اسرائيل ۱۹
کښِ صلح خواه او امانتداره يم او ته غواړي چه ښهر او مور په
اسرائيل مړه کړِي نو به ولي دَ خداوند بخره ونغړي ۲۰ نو يوآبَ ځواب ۲۰
ورکړ وئي ويل هسي دِ نه وِي هسي دِ نه وِي چه وئي نغړم يا
ئي هلاک کړم ۲۱ خبرِه داسي نه ده بلکه يو سړَي دَ افرائيم دَ غرِه دَي ۲۱
چه نوم ئي شبعَ زوي دَ بکرِي دَي چه په داؤد بادشاه ئي لاس پورته
کړي دَي تاسي يواځي هغه راکوئِ نو زه به له ښهر نه لاړ شم نو هغې

بنحې يوآب ته وويل گوره دَ هغه سر به له ديوال نه دروغورزولې
۲۲ شي ۲۲ نو هغه ښځه ټول قوم ته په خپلې دانائي سره راغله نو هغو
سر دَ شبعَ زوي دَ بکري پريکړ او يوآب ته ئې وروغورزاوه نو ده
توري ووهله او له ښهرَ تار په تار شول هر يو خپلې خيمې ته او
يوآب په اورشليم کښ بادشاه ته وجاروت
۲۳ ۲۳ او يوآب په ټول لښکر دَ اسرائيل او بناياه ځوي دَ
۲۴ يهوياداع په ټولو کريتي او په پليتي ۲۴ او ادورام په بيگار او يهوشافاط
۲۵ ځوي دَ اخيلود ذکر نويس وه ۲۵ او شيوا کاتب وه او صادوق
۲۶ او ابياتار کوهينان وُو ۲۶ او عيرا يائري هم دَ داؤد کوهين وه *

# يو ويشتم باب

۱ ۱ او دَ داؤد په ورځو کښ دري کاله لوږه وه په کال پسې کال نو
داؤد دَ خداوند مخ ولټاوه نو خداوند وويل چه دغه دَ شاؤل
۲ دَپارَ او دَ وينو دَ کور دَپارَ ځکه چه ده جبعونيان ووژلل ۲ نو
بادشاه جبعونيان را وبلل او ورته وئې ويل (نو دغه جبعونيان
له بني اسرائيل نه وُو بلکه باقيه له اموريانو وُو او بني اسرائيلو
ورسره قسم کړي وه او شاؤل وغوښتل چه دوي قتل کړي دَپارَ
۳ دَ غيرت دَده په بني اسرائيل او په يهوداه) ۳ نو داؤد جبعونيانو
ته وويل چه زه تاسو له څه وکړم او په څه کفاره وکړم چه ميراث
۴ دَ خداوند مبارک کړئ ۴ نو جبعونيانو ورته وُوِ چه ځمونږه په
شاؤل باندِ او دَده په کور باندِ سپين زر او سره زر نشته
او مونږ لره نشته چه څوک په اسرائيل کښ مړ کړو ده ورته
۵ وُوِ چه هرڅه چه تاسي وائيِ زه به ئې تاسو لره وکړم ۵ نو دوي
بادشاه ته وويل هغه سړي چه مونږ ئې تباه کړو او هغه چه
ځمونږ په خلاف ئې فکر وکړ تا چه مونږ نابود کړي شو او په

هیڅ حد دَ اسرائیل کښې و دریدلي نه شُو ۶ نو دَ هغه له ځامنو ٦
اوه تنه مونږ له دِ راکړي شِي تاچه مونږ يُ خداوند ته په جبعه
دَ شاؤل په برګزیده دَ خداوند کښې په سولِۍ کړُو نو بادشاه ووَیل
چه زه به يُ درکړم ۷ او بادشاه په مفیبوشت ځوي دَ یونتن ځوي دَ ۷
شاؤل شفقت وکړ په هغه قسم دَ خداوند چه دَ دوي په مېنځ کښې
وه په مېنځ دَ داؤد او په مېنځ دَ یونتن ځوي دَ شاؤل کښې وه-
۸ نو بادشاه ونیول هغه دوه ځامن دَ رصفه لُور دَ آیّه چه ده شاؤل ۸
له زېږولي وُو يعني ارموني او مفیبوشت او دَ شاؤل دَ لُور میکالي
پنځه زامن چه عدرئیل ځوي دَ برزلاي محولي له يُ زېږولي وُو ۹ او ۹
دَ جبعونیانو پــه لاس يُ وسپارل او دوي يُ دَ خداوند دَ
وړاندِ په غره باندِ په سولِۍ کړل او هغه اوه واړه پرېوتل او دَ لَو
په اوّلو ورځو کښې و وژللي شول دَ اوربشو دَ لَو په شروع کښې ۱۰ نو رصفه ۱۰
لُور دَ ایّه ټاټ واخست او په ږبړه باندِ يُ دَ ځان دپاره وغوړاوه
دَ لَو له شروع نه څوچه له آسمانَ اوبو پرِ راتوي شولي او دې
دَ ورځي مرغان دَ آسمان نه پرېښول چه په دوي کښېني او نه
دَ شپې ځناوران دَ پېښې ۱۱ نو داؤد خبر کړي شه چه دَ شاؤل ۱۱
سرېتي رصفې لُور دَ ایّه داسي وکړل ۱۲ نو داؤد ورغي او دَ شاؤل ۱۲
هډوکي او دَ یونتن ځوي دَ هغه هډوکي دَ یابیش جلعاد له سړو
را واخستل چه دوي هغه له چوک دَ بیت شانَ غلا کړي وُو چه
هلته فلسطیانو ځوړند کړي وُو په هغي ورځي کښې چه فلسطیانو
په جلبوعه کښې شاؤل وواهه ۱۳ نو هډوکي دَ شاؤل او هډوکي ۱۳
دَ یونتن يُ له هغه ځاي نه را وخیژول او دَ سولِۍ شوو هډوکي
يُ راټول کړل ۱۴ او هډوکي دَ شاؤل او دَده دَ ځوي یونتن يُ دَ ۱۴
بنیامین په زمکه کښې په صیلع کښې دَده دَ پلار قیس په قبر
کښې يُ ښخ کړل او هر څه چه بادشاه وفرمایل هغه يُ وکړل

او پس له هغه الله دَ هغې زمکې دَپارَ زارِي قبولَ کړه
۱۵ ۱۵ او بیا له فلسطیانو دَ اسرائیل سره جنګ وشه او داؤد
او دَده مریې ورسره کوز شول او له فلسطیانو سره ئې جنګ وکړ
۱۶ او داؤد ستړي شه ۱۶ او یشبي‌بنوب چه دَ رافا له اولاده وه او دَده
دَ نیزې دَ پیهل وزن درې سوه متقالَ دَ مسو وه او نوې ئې تړلې
۱۷ وه فکر ئې وکړ چه داؤد ووژني ۱۷ نو ابشاي زوي دَ ضرویه ئې
مددکارِي وکړه او فلسطِي ئې وواهه او وئې واژه نو هغه وقت دَ
داؤد سړو قسم وکړ ورته ئې وویل چه بیا راسره جنګ ته مه وزه
۱۸ او نه دَ اسرائیل چراغ دِ مړ شي ۱۸ نو پس له دې هم دغه جنګ
په جوب کښ له فلسطیانو سره وشه او په دغه وقت سبکاي
۱۹ حوشي ساف له چه له اولادَ دَ رفا وه قتل کړ ۱۹ بیا هم په جوب کښ
له فلسطیانو سره جنګ وشه او الحانان خوي دَ یعرِي اورجیم بیت‌لحمي
دَ جلیات جتي ورورئې وواژه چه دَ نیزې تیرئې دَ جولا دَ لټ
۲۰ په شان وه ۲۰ او بیا په جته کښ جنګ وه او یو دراز قامته سړي
وه او ګوتې دَ لاسونو ئې او ګوتې دَ پښو ئې شپږ شپږوې چه په
۲۱ شمار کښ خلیرویشت وې او دغه هم رافا ته زیږیدلی وه ۲۱ نو
هرکله چه دَ اسرائیل پیغور ئې وکړ نو یوناثان زوي دَ شِمعِي ورور
۲۲ دَ داؤد ئې قتل کړ ۲۲ دغه څلور رفا ته زیږیدلي وُو په جته کښ
دَ داؤد او دَده دَ مریونو په لاسو پریوتل ※

# دوه ویشتم باب

۱ ۱ او داؤد خداوند ته خبره وکړه په کلام دَدې غزل سره په
هغې ورځې کښ چه خداوند دَ ټولو دُښمنانو له لاس نه
او له شاؤل نه خلاص کړ
۲ ۲ نو ده وویل چه

خداوند ځما پرښه او ځما څیوده او
ځما خلاصونکي دَیَ
۳ الله ځما پرښه ځما په ده امید دَيَ
ځما ډال او ځما دَ خلاصون ښکر او
ځما اوچت برج او ځما پناګاه
ځما خلاصونکي يې ته به مِ له ظلم
نه خلاصوي
۴ زهٔ به خداوند وبولمِ چه حمید
دَيَ
نو زهٔ به له خپلو دُښمنانو خلاص
شمِ
۵ څکه چه دَ مرګ موجونو ګیر کړمِ
دَ هلاکت سیلابونو وویرولمِ
۶ دَ دوزخ بیاستو ګیر کړمِ
دَ مرګ دامونه راباندِ راغلل
۷ په خپلي تنګسي کښ مِ خداوند
وباله
او خپل الله ته مِ فریاد وکړ
نو ده له خپله هیکله ځما آواز
واوریده
فریاد مِ دَده غوږونو ته ننوته
۸ نو زمکه ولړزیده او په زلزله شوهٔ
بنیادونه دَ آسمانونو وخوځیدل
او ورېیدل څکه چه دَيَ په غصّه
شه

۹ دَده له پوزي لوګي پورته شه
او اور دَده له خولي نه وخوارهٔ
سکاره ورنه بل شول
۱۰ ده آسمانونه ټیټ کړل او راکوز
شه
او دَده تر پښو لاندِ توره تیارهٔ وهٔ
۱۱ او په کروبي سور وهٔ او والوت
او دَ باد په وزرو ښکاره شه
۱۲ چاپیرهٔ له ځانه ئې تیاره جوړه کړهٔ
سایه دَ اوبو او ګنړوالي دَ اوريځي
۱۳ له شعلو نه دَده دَ وړاندِ
دَ اور سکارهٔ بل شول
۱۴ خداوند له آسمانونو رعد وکړ
او تعالیٰ خپل آواز ورکړ
۱۵ ده غشي واستول او هغوي ئې تار
په تار کړل
برقونه او هغو له ئې شکست ورکړ
۱۶ نو تلي دَ دریاب ظاهر شول
او بنیادونه دَ دنیا ښکاره شول
دَ خداوند له ملامتیا نه
دَده دَ پوزي دَ باد له پوړي نه
۱۷ له پاسه ئې راواستول اوزهٔ ئې ونیولم
زهٔ ئې له ګنړو اوبو راکښلم
۱۸ ده زهٔ له قوي دُښمنَ خلاص کړمِ
او ځما له کیني کښانو نه څکه چه

دَيْ له مانه زيات کړندي وه
۱۹ څما دَ آفت په ورځ ئي ونيولم او
خداوند څما تکيه وه
۲۰ ده کشاده مکان ته را ويستلم
زه ئي خلاص کړم ځکه چه را نه
خوښ وه
۲۱ خداوند ما ته څما دَ صداقت په
موافق بدله راکړه
څما دَ پاکدستئِ په موافق ئي ما ته
را وګرزول
۲۲ ځکه چه ما دَ خداوند لاري
ساتلي دِي
له خپل الله نه مِ په شرارت سره
تلل ونکړه
۲۳ ځکه چه ټول عدالتونه دَده څما دَ
وړاندي وُو
او دَده له حکمونو لري نه شوم
۲۴ او زه دَده سره کامل وم
او له خپلي بدکارئِ نه مِ ځان وساته
۲۵ او لکه چه څما صداقت وه هسي
خداوند بدله راکړه
او لکه څما پاکي وه دَده دَ سترګو
دَ وړاندِ
۲۶ ته له مهربان سره مهربان ښکاريږي
او له کامل سړِي سره کامل ښکاريږي
۲۷ او له پاک سره پاک ښکاريږي
او له کاږه سره کوږ ښکاريږي
۲۸ او ته به اندوهناک خلق خلاص کړي
او ستا سترګي په کبرجنو دِي چه
پست ئي کړي
۲۹ ځکه چه ته څما چراغ يي اي
خداونده
او خداوند به څما تاريکي روښانه
کړي
۳۰ ځکه چه زه تا سره په داړه وزغليدلم
ما دَ خپل الله سره په ديوال ودنګل
۳۱ الله چه دَيْ لار دَده کامله دَه
او قول دَ خداوند کره شوي دي
دَيْ دَ هغو ټولو دَپارَ چه په ده
پناه نيسِي ډال دَيْ
۳۲ ځکه چه څوک الله دَيْ بي له
يَهُوَه
او بي څمونږ دَ الله نه څوک ګټ
دَيْ
۳۳ هغه الله څما پرښه دَ قوّت دَيْ
او څما لاري کاملي کوِي
۳۴ هغه چه پښي څما دَ هوسئِ په
شان برابروِي
او په لوړو ځايونو مِ ودروِي
۳۵ هغه څما لاسونو ته جنګ ورزده

کوِي
او خما بازوګان دَ زېړو لیندهٔ کړه وِي
۳۶ تا دَ خپل نجات ډال ما له راکړ
او ستا حلیمي زه لوي کړي یم
۳۷ تا خما قدمونه تر ما لاندِ کړل
هسي چه خما بندونه نه خوزِي
۳۸ زه په خپلو دُښمنانو پسي شوي
یم او هلاک کړي مِ دِي
او راونه جاروتم څو چه هغه
مِ فنا کړل
۳۹ ما هغوي نغړدلي دِي او چیت مِ
کړل چه ودرېدلي نه شول
او خما تر پښو لاندي پرېوتلي دِي
۴۰ تا دَ جنګ دَپارَ خما ملا په قوّت وتړله
او هغه چه په ما پورته کېدل تر ما
لاندِ دِ نیټ کړي دِي
۴۱ او تا ماته دَ دُښمنانو شا راکړه
او کینه کښان مِ دِ فنا کړل
۴۲ دوي انتظار کاوه او خلاصونکي يُ نهٔ وُه
خداوند ته مګر دوي يُ قبول نه کړه
۴۳ او دوي مِ دَ زمکي له ګرد په شان
وسُولول
دَ کوڅو دَ خټو په دود مِ مات کړل
او لتاړ مِ کړل
۴۴ او زه دِ دَ اُمّت له جګړو خلاص کړم
او زه دِ دَ قومونو دَپارَ سردار وساتلم
یو قولي چه ما نه پېژاندلي دي
دَي به خما بندګي وکړي
۴۵ دَ بیګانه وُ ځامن به خما خوشامدي
وکړِي
دَ غوږونو په آورېدلو به مِ واوري
۴۶ دَ بیګانه وُ ځامن به کمېږي
او له خپلو قلاؤ به ځانونه وتړي
۴۷ حيّ **یهوه** او خما پرښه دِ مبارک وِي
او خما دَ خلاصون پرښه الله
دِ بلندوِي
۴۸ الله خما دَپارَ بدل آخستونکي
دَي
او قومونه را لاندي کوِي
۴۹ او هغه چه دَ دُښمنانو له مېنځ
نه مِ را وباسِي
او ما په ختونکو باندِ بلند کوِي
او دَ ظالم سړي له لاس نه مِ آزادوِي
۵۰ دي دَپارَ به اي خداونده په قولمو
ستا مدح وکړم
او ستا دَ نُوم سرود به وغږوم
۵۱ دَ خپل بادشاه دَپارَ دَ نجات برج دَي
او دَ خپل مسیح دَپارَ مهرباني
او دَ داؤد او دَده دَ اولاد دَپارَ
تر ابدالآبادهٔ پوري ٭

# دري ويشتم باب

۱ آاو دا دَ داؤد ورستنئِ خبري دِي وحي دَ داؤد ځوي دَ يسّي ته او
وحي دَ هغه سړي چه په بلنديِ کښ پورته کړي شه مسيح دَ الله
۲ دَ يعقوب نغمت سرود ويونکي دَ اسرائيل ۲ دَ خداوند روح په ما
۳ کښ کلام وکړ او دَ ده خبري ځما په ژبه ۳ دَ اسرائيل الله وُوِ
ما ته يُ خبره وکړه هغه کټ دَ اسرائيل چه هغه چه په بنيِ آدم
حکومت کوِي صادق دِ وِي دَ الله په ويري دِ حکومت کوِي -
۴ ۴ او لکه نوُر دَ صباح چه نمر وخيژِي صباح بي له اوريځي لکه
۵ وابښه له زمکي په صافه روښنائِي پس له باران ۵ ځما کور دَ الله
په نزد داسي نه دَي څه؟ ځکه چه ده ما له ابدِي عهد يښي دَي
چه په هر څيز کښ آراسته او ساتلي دي نو هغه به ټوله خلاصِي
۶ او ټوله خوښِي ځما نه زرغونوِي څه؟ ۶ ليکن هغه ټول بيِ خدايه
لکه غورزولِي شوِي اغزِي ځکه چه هغه په لاسونو نيولِي نه شِي
۷ ۷ او هغه سړي چه مسه يُ کړِي نو په اوسپني او دَ نيزي په
سيل دِ سِلح پوش شِي او دوي دِ په خپل ځاي کښ په اور سره
۸ وسيځلي شِي ۸ دا دَ هغو بهادرانو نومونه دِي چه دَ داؤد وُو
يوشيب بشبث تحکموني سردار دَ دريو دا هغه ادنيو عزني وه چه
۹ په يو وار يُ په اتو سوو قتل کړل ۹ او پس له دغه اليعازر ځوي
دَ دودو ځوي دَ اخوخي يو له هغو دريو بهادرانو چه له داؤد سره
وُو هغه وقت چه دوي پيغور ورکړ هغه فلسطيانو ته چه په جنګ
۱۰ ته هلته جمع شوِي وُو او دَ اسرائيل سړي ور وختل ۱۰ دي ودريده
او فلسطيان يُ ووهل تر چه لاس يُ ستړي شه او لاس يُ په
توُري پوري ونښت او په دغي ورځي کښ خداوند لوي دَ خلاصون
۱۱ عمل وکړ او خلق په ده پسي فقط دَ لوټ دَ پارَ را وجاروتل ۱۱ او

پس له دغه شمّه څوي دَ اخي هرارِي نو فلسطيان په داره جمع شول
او هلته يوه ټکره دَ پتِي له مسورو ډکه وه نو خلق دَ فلسطيانو له مخي
نه وتښتيدل ١٢ او دَيَ په مينځ دَ هغه پتِي کښ ودريده او خلاص ئي کړ ١٢
او فلسطيان ئي ووهل او خداوند لوي خلاصون وکړ ١٣ او دري تنه له ١٣
هغو دېرشو سردارانو راکوز شول او داؤد ته په کور کښ دَ عدلّام مغارې
ته راغلل او دَ فلسطيانو لښکر دَ رفائيونو په خوړ کښ ډيره شه ١٤ او ١٤
داؤد هغه وقت په ځاودي کښ وه او دَ فلسطيانو لښکر هغه وقت په
بيتلحم کښ وه ١٥ نو داؤد خواست وکړ او وئي ويل چه کاشکي چه چا ١٥
دَ بيتلحم له کوهِي نه چه دروازي څخه دَيَ اوبه راباندِ وڅښولي ١٦ نو ١٦
هغو دريو جبّارانو دَ فلسطيانو لښکر څيري کړ او دَ بيتلحم له کوهِي نه
چه دروازي څخه وه اوبه راواخستي او داؤد ته ئي راوړي ده و نه
غوښت چه وئي څښِي بلکه خداوند ته ئي توي کړي ١٧ او وئي ويل چه ١٧
دا دِ رانه لري وِي اي خداوندَ چه دا وکړم دا دَ هغو سړو ويني دِي
چه خپل ځانونو ئي په خطره کښ واچول او وئي نه غوښت چه وئي
څښِي دا هغه دِي چه هغو دريو جبّارانو وکړل ١٨ او ابيشاي ورور دَ ١٨
يوآب زوي دَ ضرويه دغه دَ دريو سردار وه دغه خپله نيزه په دريو
سوو وچلوله وئي وژلل نو دَده نُوم دَ هغو دريو په مينځ کښ وه
١٩ دَيَ له هغو دريو زيات عزّتدار وه او دَ دغو سردار وه ليکن هغو ١٩
دريو ته نه رسيده ٢٠ او بناياهو څوي دَ يهوياداع دَ يو ډير بهادر څوي ٢٠
چه ډير کارونه ئي کړِي وُو له قبضيئيل نه دا هغه وه چه دوه دَ الله
زمرِي دَ موآب ئي ووهل او دا هغه دَيَ چه راکوز شه او زمري ئي دَ
ډوغل په مينځ کښ دَ واوري په ورځ مړ کړ ٢١ او ده يو رويدار مصرِي ٢١
قتل کړ او دَ مصرِي په لاس کښ نيزه وه نو دَيَ له همسا سره ورکوز
شه او دَ مصرِي له لاس نه ئي نيزه واخسته او دَ هغه په نيزي ئي
قتل کړ ٢٢ دا هغه دِي چه بناياهو څوي دَ يهوياداع وکړل نو نُوم ئي ٢٢

۲۳ په هغو دريو جبّارانو کښې وه ۲۳ او په دغو ديرشو زيات عزتدار وه
ليکن هغو دريو ته نه رسيده نو داؤد هغه دَ خپلو رازدارو دوستانو
۲۴ کړ عسائيل ورور دَ يواب په هغو ديرشو وه الحانان ځوي دَ دودو دَ
۲۵ ۲۶ بيت‌لحم ۲۵ او شمّه حرودي اليقا حرودي ۲۶ حالص فلطي عير ځوي دَ عقيش
۲۷ ۲۸ تقوعي ۲۷ او ابيعزر عناتوثي او مبوناي حوشاتي ۲۸ صلمون اخوحي او
۲۹ مهراي نطوفاتي ۲۹ او خالب ځوي دَ بعنه نطوفاتي آتاي ځوي دَ ريباي له
۳۰ ۳۱ جبعي دَ بني بنيامين ۳۰ بنايا فرعاتوني هداي دَ جاعش له رودونو ۳۱ ابي‌علبون
۳۲ عرباتي عزماوث برحومي ۳۲ اليحبا شعلبوني له بني ياشن نه يوناتان
۳۳ ۳۴ ۳۳ شمه هراري اخيام زوي دَ شارار اراري ۳۴ اليفلط ځوي دَ
۳۵ احسباي ځوي دَ معکتي اليعام ځوي دَ اخي‌توفل جيلوني ۳۵ حصراي
۳۶ کرملي فعراي اربي ۳۶ ايجال ځوي دَ ناتان دَ صوبه او باني جادي-
۳۷ ۳۷ صالق اموني نحراي بيروتي وړونکي دَ سلاح دَ يواب ځوي دَ
۳۸ ۳۹ ضرويه ۳۸ عيرا يتري جاريب يتري ۳۹ اوريا حتي داټول اوه ديرش شول‡

# څلور ويشتم باب

۱ او بيا دَ خداوند خفګي په اسرائيل ګرمَ شوه نو داؤد ئي ورته ولمساوه
۲ په دي ويلو سره چه لاړ شه او اسرائيل او يهودا وشماره ۲ نو بادشاه
يواب دَ لښکر سردار ته چه ده ځنه وه ووئيل چه ته په ټولو فرقو
دَ اسرائيل کښې له دانَ تر بير سبع پوري وګرزه او اُمّت وشماره چه
۳ زه عدد دَ اُمّت معلوم کړم ۳ نو يواب بادشاه ته ووئيل چه خداوند
الله ستا دِ هغه اُمّت هرڅومره او دومره چه وِي سل ګونه زيات کړي او
سترګي دَ خاوند بادشاه کتونکي دِي ليکن څه لره زما خاوند بادشاه
۴ په دي خبري خوښيږي؟ ۴ نو خبره دَ بادشاه په يواب سخته شوه او
په سردارانو دَ لښکر نو يواب او سرداران دَ لښکر دَ بادشاه له
۵ حضوره ووتل تا چه هغه اُمّت وشماري يعني اسرائيل ۵ نو له اردن

پوري وتل او په عروعير کښې دَ هغه ښهر په ښي طرف .چه دَ
جاد دَ رود په مينځ کښې او دَ يعزير خوا ته ئې ډيره وکړه ٦ او جلعاد ۶
ته او دَ تحتيم حدشي و زمکي ته راغلل او دان يعن ته راغلل او صيدون
ته وګرځيدل ٧ بيا قلادار صور ته راغلل او ټولو ښهرونو ته دَ ۷
حويانو او دَ کنعانيانو او جنوبي طرف دَ يهودا ته تر بير سبع پوري
ووتل ٨ او چه دوي په ټولي زمکي کښې ښنلي وُو او په آخر دَ نهو ۸
مياشتو شلو ورځو کښې اورشليم ته راغلل ٩ نو يواب ټول شمار ۹
دَ اُمّت بادشاه ته ورکړ نو اسرائيل اته سوه زره توري وکښونکي
سړي وختل او سړي دَ يهودا پنځه سوه زره وُو
١٠ او داؤد پس له هغه چه اُمّت ئې وشماره خپل زړه ئې ۱۰
وواهه نو داؤد خداوند ته وويل چه ما په هغه کار کښې چه ومې کړ
ډيره خطائي مې وکړه او اوس اي خداونده دَ خپل بنده بدکاري
لري کړه ځکه چه ما ډيره احمقي وکړه ١١ او چه صبا شه داؤد پاڅيده ۱۱
نو جاد نبي ته چه دَ داؤد غيب ليدونکي وه دَ خداوند کلام راغي
وئې ويل ١٢ چه لاړ شه داؤد ته ووايه چه خداوند داسي وايي چه زه ۱۲
دري آفتونه په تا راولم او ته دَ ځان دَ پاره له هغو نه يو غوره کړه
نو زه به ئې په تا وکړم ١٣ نو جاد داؤد ته ورغي او خبر ئې کړ ورته ۱۳
وئې ويل چه ستا په زمکه کښې به په تا اوه کاله لوږه راشي يا
خو به ته دري مياشتي دَ دُښمنانو له وړاندي وتښتي او هغه به
دريسي وي او يا به دري ورځي ستا په زمکه کښې وبا وي نو اوس
صلاح وکړه او وګوره چه زه خپل استونکي ته څه ځواب ورورم ١٤ نو ۱۴
داؤد جاد ته وُوِ چه ډير تنګ يم مونږ دِ دَ خداوند په لاس کښې
پريوزُو ځکه چه دَده رحمتونه ډير دي او په لاس دَ سړي کښې دِ
پري نه وزم ١٥ نو خداوند په اسرائيل کښې وبا واستوله له صباح نه ۱۵
تر مقرّر وقت پوري او له اُمّت نه له دان تر بير سبع پوري اويا زره

١٦ سږي مړه شول ١٦ او چه فرښتي خپل لاس په اورشليم غوړاوه چه
هلاک ئي کړي نو خداوند له بدي نه ارمان وکړ او دَ اُمّت هلاکونکي فرښتي
ته ئي وويل چه بس دَي اوس خپل لاس پريږده او فرښته دَ خداوند دَ
١٧ اَرَونَه يبوسِي درمند څنحه وه ١٧ نو داؤد له خداوند سره خبره وکړه هرکله
چه هغه په اُمّت وهونکي فرښته ئي وليده او وئي ويل گوره ما گناه
کړي ده او بدي ما وکړه ليکن دغو گډورو څه کړي دي؟ نو ستا لاس
دِ په ما او ځما دَ پلار په کورِوي
١٨ ١٨ او په دغي ورځي کښ جاد داؤد ته ورغي او وئي ويل چه
١٩ وخيژه او خداوند ته دَ اَرَونَه يبوسِي په درمند کښ مذبح پورته کړه ١٩ او
٢٠ داؤد دَ جاد دَ ويلو په موافق وخوت لکه چه خداوند فرمايل ٢٠ نو اَرَونَه
وکتل او بادشاه او دَده مريي ئي وليدل چه دَده په طرف ورځي نو اَرونه
٢١ ووت او بادشاه ته ئي په مخ باندِ زمکي ته سجده وکړه ٢١ نو اَرونه وُوِ
څله خاوند بادشاه خپل غلام ته راغلي دَي داؤد وُوِ دَپارَ دَدي چه
له تانه درمند وپيرم تاچه خداوند ته مذبح بنا کړم تا چه له اُمّت
٢٢ نه وبا بنده شِي ٢٢ نو اَرونَه داؤد ته وويل چه خاوند بادشاه دِ ئي واخلي
او چه دِ په سترگو کښ ښه وِي هغه وخيژوه گوره هغه غوايي
دَ سيزولو دَپارَ او دَ درمند عربي او اسباب دَ غوايه دَ بالن دَپارَ
٢٣ ٢٣ دغه ټول واړه اَرونَه مالک دَ هغو بادشاه ته ورکړه او اَرونَه
٢٤ بادشاه ته وُوِ چه خداوند الله ستا دِ درنه راضِي شِي ٢٤ نو
بادشاه اَرونَه ته وويل چه نه بلکه له تا نه ئي په قيمت سره پيرم او
خداوند الله خپل ته به ويريا قرباني و نه خيژوم نو داؤد هغه درمند او
٢٥ غوايي په پنځوس روپيو دَ سپينو و پيرود ٢٥ او داؤد هلته کښ دَ
خداوند دَپارَ مذبح بنا کړه او سيزونکي قرباني او دَ سلامتيا ذبحي
ئي وخيژولي او خداوند دَ زمکي دَپارَ زارِي قبوله کړه او وبا له
اسرائيل نه بنده شوه ❊

# بادشاهان

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو کښې ترجمه کړي شه




T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد آلرحمان او غلام جلاني کاتب


د مطبع برتش و فارن بيبل سوسيتي لندن

# KINGS I. & II., IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.
1895.

# دَ بادشاهانو ورنبي کتاب

## اول باب

آ او داؤد بادشاه زوړ شه او په ورځو کښ راغي او هغوي ۱
به په جامو پټاوه او دي به نه تودېده ۲ نو ده ته دَده نوکرانو ۲
ووېل چه څمونږ خاوند بادشاه لره دِ يوه ځوانه پېغله ولټولي
شي او دَ بادشاه دَ وړاندِ دِ ولاړه وِي او ده سره دِ ساکنه
وِي او چه ستا په غېږ کښ څملي نو به څمونږ خاوند بادشاه
تود کېږي ۳ نو هغو په ټولو حدونو دَ اسرائيل کښ ښائسته ۳
جلئِ ولټوله نو ابيشج شونميت ئِي وموندله او هغوي بادشاه
ته راوستله ۴ او هغه جلئِ ډېره ښايسته وَه او هغه له بادشاه ۴
ساکنه وه او دَده خدمت ئِي کاوه او بادشاه هغه ونه پېژندله
۵ بيا ادونياه زوي دَ حجيث خپل ځان پورته کړ وئِي وېل چه زه ۵
به بادشاهِي کوم او دَ خپل ځان دَپاره ئِي ګاډِي او سواره او
پنځوس سړِي چه دَده دَ وړاندِ زغاستونکي وِي تيار کړل ۶ او دَده ۶
پلار هرګز غضب ورته نه کاوه چه وېلي ئِي وَي چه څه دَپاره تا
داسي کړِي دِي او هغه هم ډېر ښائسته شکلي وه او دَده مور هغه
پس له ابيشالومه زېږولي وه ۷ او دَده خبره له يوآب بن ضرويه ۷
او له ابياثار کوهين سره وه او هغه په ادونيا پسي شول
مددګارِي ئِي ورکوله ۸ او صدوق کوهين او بناياهو بن يهوياداع ۸
او ناثان نبِي او شمعي اوريعي او هغه جبّاران چه دَ داؤد وُو
له ادونيا سره نه وُو ۹ نو ادونيا ګډي او غوايان او څاربه ۹
څاروِي ذبح کړل هغه کاڼِي زوخلت څخه چه په څنګ دَ عين روجل
کښ دَي او ټول خپل وروڼه دَ بادشاه ځامن او ټول سړِي

۱۰ دَ یهودا دَ بادشاه غلامان ئي وبلل ۱۰ او ناثان نبي او بنایاهو
۱۱ او جبّاران او سلیمان ورور خپل ئي و نه بلل ۱۱ نو ناثان له
بتشبع مور دَ سلیمان سره خبره وکړه و ئي ویل چه تا اورېدلي
نه دِي چه ادونیاه زوي دَ حجیث بادشاهِي کوِي او ځمونږ
۱۲ خاوند داؤد پرِ نه پوهیږي ۱۲ نو اوس ته راشه چه زه صلاح
درکړم اوچه خپل ځان او دَ خپل ځوي سلیمان ځان خلاص
۱۳ کړِي ۱۳ لاړه شه او داؤد بادشاه ته ورننه وزه او ورته
ووایه چه کنږه تا اي خاونده بادشاه خپلي وینځي ته قسم
خوړلي نه وه ویل دِ چه سلیمان ستا ځوي به پس له ما بادشاهي
کوِي او دي به ځما په تخت کښیني نو څه دَپاره ادونیاه بادشاهِي
۱۴ کوِي ۱۴ کوره چه ته هلته کښ له بادشاه سره خبري کوي
نو زه به په تا پسي درننه وزم او ستا خبره به کامله کړم
۱۵ ۱۵ نو بتشبع دَ بادشاه خلوتخانې ته ورننوته او بادشاه ډېر
۱۶ زوړ شوی وه او ابیشج شونمِي دَ بادشاه خدمت کاوه ۱۶ نو
بتشبع ټیټه شوله او بادشاه ته ئي سجده وکړه او بادشاه ورته
۱۷ وویل چه تا لره څه دِي ۱۷ نو دي ورته وویل چه تا اي خاونده په
خداوند الله ستا خپلي وینځي ته قسم وخوړ و دِ ویل چه په
رښتیا سره سلیمان ستا زوي به پس له ما نه بادشاهِي کوِي
۱۸ او دي به ځما په تخت کښیني ۱۸ او اوس کوره ادونیاه بادشاهِي
۱۹ کوِي او ته اي خاونده بادشاه په دغي خبر نه ئي ۱۹ او ده
سخوندران او څاربه څاروِي او کډي په کثرت سره ذبح کړِي
دِي او ټول زامن دَ بادشاه او ابیاثار کوهین او یواب سردار
دَ لښکر ئي بللي دِي او ستا غلام سلیمان ئي بللي نه دي -
۲۰ ۲۰ او ته اي خاونده بادشاه دَ ټول اسرائیل سترګي ستا په
لوري دِي تا چه ته ئي خبر کړِي چه څوک به په تخت دَ بادشاه

خاوند څما پس له ده نه کښېني ۲۱ نو داسي به وشِي هرکله ۲۱
چه څما خاوند بادشاه له خپلو پلرونو سره څملي نو زه او څما
زوي سليمان به خطاکاران وګڼلي شو ۲۲ او ګوره چه دي ۲۲
له بادشاه سره تر اوسه خبري کولي چه ناثان نبي دننه راغي
۲۳ او بادشاه ئ خبر کړ وئ ويل ګوره ناثان نبي او هغه دَ ۲۳
بادشاه حضور ته ورغيَ او بادشاه ته ئ په مخ زمکي ته سجده وکړه
۲۴ او ناثان وويل اي څما خاونده بادشاه تا وويل چه ادونياه به پس ۲۴
له ما بادشاهي کوي او هغه به څما په تخت کښيني څه؟ ۲۵ څکه ۲۵
چه هغه نن ورځ کوز شه او سخوندران او څاربه څاروي او
کډي ئ په کثرت سره ذبح کړل او ټول زامن دَ بادشاه او سرداران
دَ لښکر او ابياثار کوهين ئ بللي دِي او ګوره هغوي دَده دَ وړاندِ
خوري او څښي اووايي چه ادونياه بادشاه دِ ژوندئ اوسي -
ليکن زه غلام ستا او صدوق کوهين او بناياهو زوي دَ يهوياداع ۲۶
او سليمان ستا غلام ئ ونه بلل ۲۷ دا خبره څما دَ خاوند بادشاه ۲۷
له خوا مقرره شوه او خپل غلام دِ پرِ خبر نه کړ چه څما دَ
خاوند بادشاه په تخت به پس له ده نه څوک کښيني ۲۸ نو داؤد ۲۸
بادشاه څواب ورکړ وئ ويل چه بتشبع راوبولِئ او هغه دَ
بادشاه په حضور راغله او دَ بادشاه په مخ کښي ودريدله
۲۹ نو بادشاه قسم وخوړ وئ ويل چه هغه يهوه حيَ ۲۹
دَيَ چه څما ځان ئ له هري تنګئ نه فديه کړي دَيَ ۳۰ لکه چه ۳۰
ما تا ته په خداوند الله دَ اسرائيل قسم وخوړ وم ويل چه
سليمان ستا زوي به پس له ما څما په تخت څما په ځاي
کښيني هم هسي به نن ورځ وکړم ۳۱ نو بتشبع زمکي ته پړمخ ۳۱
پريوتله او بادشاه ته ئ سجده وکړه او وئ ويل څما خاوند
بادشاه داؤد دِ تر ابده ژوندئ وِي ۳۲ او داؤد بادشاه وويل ۳۲

چه ماته صدوق کوهين او ناثان نبي او بناياهو زوي دَ
۳۳ يهوياداع راوبوله نو هغوي دَ بادشاه دَ وړاندِ ورغلل ۳۳ نو
بادشاه هغوته وويل چه تاسي دَ خپل خاوند نوکران درسره
واخلئ او زما زوي سليمان په هغه قچري چه زما ده سور کړئ
۳۴ او جيحون ته ئې کوز کړئ ۳۴ او هلته دِ ئې صدوق کوهين او
ناثان نبي مسح کړي چه په اسرائيل بادشاهي وکړي او
تاسي تُوريئ ووهئ او تاسو ووائي چه سليمان بادشاه دِ ژوندي
۳۵ وِي ۳۵ او په ده پسي تاسو را وخيژئ او هغه به راشي او زما
په تخت به کښيني او زما په ځاي به بادشاهي وکړي او ما دَ مقرّر
۳۶ کړ چه په اسرائيل او په يهودا دِ شاهزاده وِي ۳۶ نو بناياهو
زوي دَ يهوياداع بادشاه ته ځواب ورکړ و ئې ويل آمين خداوند
۳۷ الله زما دَ خاوند بادشاه دِ هسي وائي ۳۷ لکه چه خداوند زما
له خاوند بادشاه سره وه هم هسي دِ دَ سليمان سره وِي
او دَده تخت دِ زما دَ خاوند بادشاه داؤد له تخت نه زيات
۳۸ لوي کړي ۳۸ نو صدوق کوهين او ناثان نبي او بناياهو زوي
دَ يهوياداع او کريتي او فليتي کوز شول او سليمان ئې دَ
۳۹ داؤد بادشاه په قچري سور کړ او جيحون ته ئې وکرزاوه ۳۹ نو
صدوق کوهين له مسکن نه دَ تيلو ښکر واخست او سليمان
ئې مسح کړ او تُوريئ ئې ووهلي او ټول اُمّت وويل چه سليمان
۴۰ بادشاه دِ ژوندي وِي ۴۰ او ټول اُمّت ورپسي وخوت او اُمّت
په شپيلو شپيلئ وهلي او په ډيره خوښئ ئې خوښي کوله ځو
۴۱ چه زمکه دَدوي له آوازونو څيري شوله ۴۱ نو ادونياه او ټولو
بلليو شويو چه ورسره وُو او دوي خوړل ختم کړل وائي وريدل
او يوآب دَ تُوريئ آواز واوريده او وئې ويل چه ولي دَ ښهر دَ
۴۲ لړزيدلو آواز دي ۴۲ او چه دوي لا خبري کولي گوره چه يوناثان

زوي دَ ابياتار کوهين راغي نو ادونياه وويل راشه چه ته
۴۳ لايق سړي يي او ښه زيري کوي ۴۳ نو يوناتان ځواب ورکړ ادونيا
ته ئې وويل چه په رښتيا ځمونږ خاوند بادشاه داؤد سليمان
۴۴ بادشاه کړ ۴۴ او بادشاه له هغه سره صدوق کوهين او ناتان
نبي او بناياهو زوي دَ يهوياداع او قريتي او فليتي له هغه
۴۵ سره واستول او دي ئې دَ بادشاه په قچرې سور کړه ۴۵ او صدوق
کوهين او ناتان نبي بادشاه په جيحون کښې مسح کړ او له هغه
ځاي نه خوښي کوونکي وختل ځو چه ښهر ور لړزيده دا هغه
۴۶ آواز دَي چه تاسو واوريده ۴۶ او سليمان هم دَ بادشاه په
۴۷ تخت کښيني ۴۷ او دَ بادشاه غلامان ورغلل چه ځمونږ خاوند
بادشاه داؤد ته مبارکي ورکړي ووائي چه ستا الله دِ دَ سليمان
نُوم ستا له نُوم نه زيات نيک کړي او دَ هغه تخت دِ ستا له
تخت نه زيات لوي کړي نو بادشاه په خپل کټ باندِ سجده وکړه
۴۸ ۴۸ او هم بادشاه لکه داسي وويل چه خداوند الله دَ اسرائيل
دِ مبارک وي هغه چه ماته ئې نن ورځ کښيناستونکَي ځما په
۴۹ تخت راکړ او ځما سترګي ئې ويني ۴۹ نو ټول بللي شوي چه ادونيا
ځنه وُو ولړزيدل او پورته شول او هر سړَي په خپلي لاري
۵۰ لاړ ۵۰ او ادونياه دَ سليمان له مخ نه ووېريده او پورته شه او
۵۱ لاړ او دَ مذبح ښکرونو ئې ونيول ۵۱ نو سليمان ته خبرکند کړي
شول به دي ويلو سره چه ګوره ادونياه دَ سليمان بادشاه نه
ويرېږي او ګوره چه دَ مذبح ښکرونه ئې نيولي دِي وائي چه سليمان
بادشاه دِ ماته نن ورځ قسم وخوري چه خپل مريي به په توري
۵۲ نه وژني ۵۲ نو سليمان وويل چه که دي دَ لياقت زوي وي
نو دَ ده له وېښتو نه به زمکي ته يو نه وزي ليکن که په ده کښې
۵۳ شرارت وموندي شي نو مړ به شي ۵۳ نو سليمان بادشاه واستاوه او

هغه ئي له مذبح نه کوز کړ او هغه راغي او سلیمان ته ئي
سجده وکړه او سلیمان ورته وویل خپل کور ته ورځه ؞

# دویم باب

۱ او دَ داؤد دَ مړکیدلو ورځي نژدي شوي نو خپل زوي سلیمان
۲ ته ئي وصیت وکړ و ئي ویل ۲ چه زه دَ ټولي زمکي په لاري ځم
۳ او ته مضبوط شه او مردانه شه ۳ او دَ خداوند الله ستا
ساتنه دِ وساته چه ته دَده په لاري ګرزي او دَده دَ حکمونو
فرضونه او دَده عدالتونه او شاهدیئِ وساتي لکه چه دَ موسیٰ
په توریت کښي لیکلي شوي دِي تا چه ته په هرڅه کښي چه
۴ کوي کامیاب شي او هرچرته چه مخ کوي ۴ تا چه دَ خداوند
هغه خپل کلام چه له ما سره ئي وکړ ودروي چه ده ویل چه
که ستا زامن خپلي لاري وساتي چه ځما دَ وړاندِ په رښتیا سره
چلیږي په ټولو زړونو خپلو او په ټولو ځانونو خپلو سره نَو
وویل چه تا لره به یو سړيَ دَ اسرائیل له تخت نه پریکړي
۵ نه شي ۵ او ته هم پوه شه هغه چه له ما سره یوآب زوي
دَ ضرویه وکړل هغه چه دَ اسرائیل دَ لښکرو له دوو سردارانو
سره له ابنیر بنِ نیر او له عماسا زوي دَ یتر سره ئي وکړل
چه دوي ئي قتل کړل او دَ جنګ وِیني ئي په صلح کښي کیښوي او
دَ جنګ ویني دَده په کمربند کښي چه په ملا ئي وه ورکړي او
۶ په هغو څپلیو کښي چه دَده په پښو کښي وي ۶ نو ته دَ خپلي
دانائي په موافق کوه او ته دَ هغه سپین سر ګورهندي ته
۷ په سلامتي سره مه کوزوه ۷ او دَ برزلائي جلعادِي له زامنو
سره مهرباني کوه او هغوي دِ ستا دَ خواڼي په خوړونکیو کښي
وِي ځکه چه دوي هسي چه زه ستا دَ وروړ ابیشالوم له مخه

۸ تېښتېدم راقریب شول ۸ او ګوره چه شمعي زوي دَ جیرا بنیامیني
دَ بحوریم له تا سره وِي او دغه په هغه ورځ چه زه محنایم
ته لاړ شوم په تُند لعنت سره ئې زه لعنت کړم او هغه څما
ملیا کېدلو ته اردن ته راکوز شه نو ما دغه لره په خداوند
۹ قسم وخوړ و مِ ویل چه زه به دِ په توري مړ نه کړم ۹ او
اوس ئې ته بېګناه مه ګڼه ځکه چه ته دانا سړي يي او په
هغه پوهېږې چه ته به ئې څه وکړې او دَ هغه سپین سر له
۱۰ وینو سره ګور هندي ته ورکوز کړه ۱۰ او داؤد له خپلو پارونو
۱۱ سره څملاست او دَ داؤد په ښهر کښ ښخ کړي شه ۱۱ او
هغه ورځې چه داؤد په اسرائیل بادشاهي کوله څلوېښت کاله
وي په حبرون کښ ئې اوه کاله بادشاهي وکړه او په اورشلیم
کښ ئې دري دېرش کاله بادشاهي وکړه
۱۲ ۱۲ او سلیمان دَ خپل پلار داؤد په تخت کښېناست او
۱۳ دَده بادشاهي ډېره ثابته وَه ۱۳ بیا ادونیاه ابن حجیث بتشبع
مور دَ سلیمان ته ورغي و ئې ویل چه ته په سلامتۍ سره
۱۴ راغلي هغه وویل سلامت ۱۴ او و ئې ویل چه څما در سره خبره
۱۵ ده دي ورته وویل خبره وکړه ۱۵ ده وویل چه ته پوهېږې چه
بادشاهي څما وَه او چه په ما ټول اسرائیل خپل مخونه کېښودل
چه زه بادشاهي وکړم لیکن بادشاهي وګرزیده او څما دَ ورور
۱۶ شوه ځکه چه دغه دَ خداوند له لوري ده لره وشوه ۱۶ او اوس
زه یو سوال له تا نه کوم څما مخ مه ګرزوه دې ورته وویل
۱۷ خبره وکړه ۱۷ ده وویل چه ته سلیمان ته ووایه ځکه چه هغه
به ستا مخ و نه ګرزوي چه ما ته ابیشج هغه شونمیته ما ته
۱۸ ښځه راکړي ۱۸ نو بتشبع وویل ښه زه به ستا خبره بادشاه
۱۹ ته وکړم ۱۹ نو بتشبع بادشاه سلیمان ته ورننه وتله چه

دَ ادونیا خبره ورسره وکړي نو بادشاه دَ هغې ملیا کیدلو ته
پاځیده او سجده ئې ورته وکړه او په خپل تخت کښیناست
او دَ مور دَ بادشاه دَپاره ئې کرسئ کیښووله او هغه دَده په
۲۰ ښي لاس کښیناستله ۲۰ او دې وویل چه زه له تا نه یو وړوکي
سوال به سوال سره کوم ته به ځما مخ و نه کرزوې بادشاه
ورته وویل اې مورې له ما نه سوال وکړه چه زه به ستا
۲۱ مخ و نه کرزوم ۲۱ دې وویل چه ابیشج شونمیته ادونیا ورور
۲۲ خپل ته ښځه ورکړه ۲۲ نو سلیمان بادشاه ځواب ورکړ خپلي
مورته ئې وویل چه ته ولي ابیشج شونمیته دَ ادونیا دَپاره
غواړې ته دَ هغه دَپاره بادشاهي وغواړه ځکه چه هغه ځما
مشرورور دې او ابیاثار کوهین لره او یواب زوی دَ ضرویه لره
۲۳ ۲۳ او سلیمان بادشاه په خداوند قسم وخوړ و ئې ویل چه
الله دِ داسي له ما سره وکړي او له داسي دِ زیات وکړي چه که
ادونیا به دې خبري سره دَ خپل ځان په خلاف خبره کړې دَه -
۲۴ ۲۴ او اوس یهوه حي دې چه زه ئې ودرولم او دَ خپل پلار
داؤد په تخت ئې کښینولم او هغه چه ما لره ئې کور جوړ کړ
۲۵ لکه چه ده کلام وکړ چه ادونیا به نن ورځ ووژلې شي ۲۵ نو
سلیمان بادشاه بنایاهو بن یهویاداع واستاوه او هغه په ده
۲۶ حمله وکړه او هغه مړ شه ۲۶ او بادشاه ابیاثار کوهین ته وویل
چه ته عناتوث خپل پټي ته لاړ شه ځکه چه ته دَ مرګ سړې
یې لیکن په دې ورځ دِ نه وژنم دې دپاره چه تا ځما دَ پلار
داؤد دَ وړاندِ دَ خداوند یهوه صندوق پورته کړ او چه ته په
۲۷ هغه ټولو اندوهګیر شوې چه ځما پلار پرِ اندوهګیر شه ۲۷ او
سلیمان ابیاثار و شاړه چه خداوند لره کوهین نه وي دَپاره دَ
پوره کولو دَ کلام دَ خداوند چه ده په شیلوها کښ دَ عیلي

دَ کور په حق کښې وکړ ۲۸ نو دا خبر یوآب ته ورغئَ ځکه چه ۲۸
یوآب په ادونیا پسې مایل شوي وه او اګر که په ابیشلوم پسې
مایل شوي نه وه نو یوآب دَ خداوند مسکن ته وتښتیده اوَ دَ مذبح
ښکرونه ئې ونیول ۲۹ نو سلیمان بادشاه ته څرګند کړې شه چه ۲۹
یوآب هم دَ خداوند مسکن ته وتښتیده اوګوره هغه دَ مذبح
په څنګ کښې دئَ نو سلیمان بناياهو زوي دَ یهویاداع واستاوه
وئې ویل لاړ شَه حمله پرِ وکړه ۳۰ نو بناياهو دَ خداوند مسکن ۳۰
ته ننوت او ورته ئې وویل چه بادشاه داسې وائِي څَه ده
وويل چه نه لیکن زه به دلته ومرم نو بناياهو بادشاه ته
خبره وګرزوله وئې ویل چه یوآب داسې خبره وکړه او داسې ځواب
ئې راکړ ۳۱ او بادشاه ورته وویل لکه چه هغه خبره وکړه ته ۳۱
هسې وکړه او په هغه حمله وکړه او ښخ ئې کړه چه دَ هغو بې ګناهو
خون لرې کړې چه یوآب توي کړي له ما نه او ځما دَ پلار له
کوره ۳۲ نو خداوند به دَ هغه وينې دَ ده په سر ورګرزوي ۳۲
چه ده په دوو صادقانو سړو چه له ده نه بهتر وُو حمله وکړه
او په توري ئې قتل کړل او ځما پلار داؤد پرِ نه پوهیده آبنیر
بن نیرَ سردار دَ لښکر دَ اسرائیل او عماسه بن یثر سردار دَ
لښکر دَ یهودا ۳۳ نو دَ هغو وینې به دَ یوآب په سر او دَ ده ۳۳
دَ اولاد په سر تر ابده پورې وِي او داؤد او دده اولاد او
دَ ده کور او دَ ده تخت له تر ابدَ پورې به سلامتي وِي دَ خداوند
له خوا نه ۳۴ نو بناياهو بن یهویاداع وختو او حمله ئې پرِ وکړه ۳۴
او مړ ئې کړ او هغه په خپل کور کښې په بیابان کښې ښخ
کړې شه ۳۵ او بادشاه بناياهو بن یهویاداع دَ ده په ځاي په ۳۵
لښکر باندِ مقرّر کړ او بادشاه صدوق کوهین دَ ابیاثار په
ځاي مقرّر کړِ ۳۶ او بادشاه واستوه او شمعي ئې وباله ورته ۳۶

ئې وويل چه ته دَ خپل ځان دَپاره په اورشليم کښې کور بنا کړه
۳۷ او هلته کښې اوسه او دلې هورې هلته مه ځه ۳۷ او په هغه
ورځ چه ته ووزې او دَ قدرون په رود پورې شې نو په پوهې
سره پوه شه چه په مړ کيدلو به مړ شې وينې ستا به ستا
۳۸ په سر وِې ۳۸ نو شمعِي بادشاه ته وويل هغه ښه خبره
چه څما خاوند بادشاه خبره وکړه هسې به ستا مريي کوِي نو
۳۹ شمعِي په اورشليم کښې ډيرې ورځې اوسيده ۳۹ او په آخر
دَ دريو کالو کښې دوه مريونه دَ شمعِي اخيش بن معکه بادشا
دَ جته ته وتښتيدل نو هغوي شمعِي ته څرګند کړه و ئې ويل
۴۰ ګوره ستا مريونه په جته کښې دِي ۴۰ نو شمعِي پورته شه او
په خپل خره ئې زين وتاړه او جته ته اکيش ته لاړ چه دَ خپلو
مريونو پرُسش وکړي نو شمعِي روان شه او مريونه ئې له جتې
۴۱ راوستل ۴۱ نو سليمان ته څرګند کړي شه چه شمعِي له اورشليم
۴۲ نه جتې ته لاړ او را وګرزيده ۴۲ نو بادشاه واستاوه او
شمعِي ئې راوباله او ورته ئې وويل چه ما تاته په خداوند
قسم درکړيَ نه وه او په تاِم تاکيد کړيَ نه وه وِم ويل
چه هغه ورځ چه ته ووزې هلته او هورې لاړ شې نو په
پوهه سره پوه شه چه ته به په مرګ سره مړ شې او تا راته
۴۳ وويل چه ښه خبره دَه ما واوريدله ۴۳ نو تا ولې دَ خداوند
قسم ساتلې نه دَې او هغه فرمان چه ما درته فرمايلې دي
۴۴ ۴۴ بيا بادشاه شمعِي ته وويل چه ته هغه ټول شرارت پيژنې
چه ستا زړه پرِ پوهيږِي هغه چه تا څما له پلار داؤد
سره کړي دي نو خداوند به ستا شرارت ستا په سر
۴۵ در وګرزوِي ۴۵ او بادشاه سليمان به مبارک ِشي او تخت
دَ داؤد به دَ خداوند دَ وړاندِ تر ابدَ پورې ثابت وِي —

۴۶ ۴۶ او بادشاه بناياهو بن يهوياداع ته وفرمايل او هغه ووت
اوحمله ئي پرِ وكړه او هغه مړ شه او بادشاهي دَ سليمان په لاس كښې
ثابته شوه ❊

# دريم باب

۱ ۱ او سليمان دَ مصر دَ بادشاه فرعون سره خپښي وكړه او دَ
فرعون لور ئي واخستله او دَ داؤد ښهر ته ئي راوستله تر دي
پوري چه ده دَ خپل كور بنا كولو او دَ خداوند دَ بيت او دَ
۲ اورشليم ديوالونه چه له ده چاپيره وُو تمام كړل ۲ تش اُمّت
به په لوړو ځايونو ذبحې كولې ځكه چه تر دي ورځو پوري دَ
۳ خداوند په نوم كور جوړ شوي نه وه ۳ او سليمان په خداوند
مينه كوله او دَ خپل پلار داؤد په حكمونو تلونكي وه تش ده
۴ په لوړو ځايونو كښې به ئي ذبحې اوخوشبوي سيزله ۴ او بادشاه
جبعون ته لاړ چه هلته كښې ذبحې وكړي چه هغه شريف لوړ وه
او سليمان يو زر سيزونكي قربانئ په دغه مذبح وخېژولې —
۵ ۵ نو په جبعون كښې خداوند سليمان ته دَ شپې په خوب كښې
ورښكاره شه او الله ووېل چه سوال وكړه چه زه څه تا ته
۶ دركړم ۶ او سليمان ووېل چه تا له خپل بنده داؤد ځما پلار
سره لويه مهرباني وكړه موافق دَ هغه چه ستا دَ وړاندِ په
امانت داريِ او په صداقت او په راستيِ دَ زړه درسره ته نو تا
هغه سره دا لويه مهرباني وساتله او تا ځوي وركړ چه دَده په
۷ تخت كښېني لكه نن ورځ ۷ او اوس اي خداوندَ ځما الله تا
خپل بنده ځما دَ پلار داؤد په ځاي بادشاه كړي دَي او زه
۸ وړوكَي ځوان يم چه په وتلو او ننوتلو نه پوهيږم ۸ او ستا
بنده ستا دَ اُمّت په منځ كښې دَي هغه چه تا غوره كړيَ دَي
داسي ډېر اُمّت چه دَ كثرت له سببَ نه شمار كيدلي نه په

۹ حساب کیدلي شِي ۹ نو خپل بنده ته یو پوهان زړه ورکړه چه
ستا په اُمّت حکم وکړي او دَ نیک او دَ بد په مینځ کښ تمیز
وکړي ځکه چه څوک توانیږي چه په داسي لوي اُمّت حکومت
۱۰ وکړي ۱۰ نو هغه کلام دَ خداوند په سترګو کښ خوښ شه
۱۱ چه سلیمان دا خبره ورته سوال وکړه ۱۱ نو الله ورته ووېل
دي دَپاره چه تا دَدي خبري سوال وکړ او دَ ځان دَپاره دِ
دَ ډیرو ورځو سوال و نه کړ او نه دِ دَ خپل ځان دَپاره دَ
دولت سوال وکړ او نه دِ دَ خپلو دُښمنانو دَ ځانونو سوال
وکړ بلکه دَ خپل ځان دَپاره دِ دَ تمیز سوال وکړ چه ته په
۱۲ حکم و پوهیږي ۱۲ ګوره ما ستا دَ خبري په موافق کړي دِي
ګوره ما تا ته دانا او تمیز کونکي زړه درکړي دیَ هسي چه له
تا نه وړاندِ ستا په شان نه وه او نه به ستا په شان
۱۳ ورستو پورته شِي ۱۳ او ما تا ته هغه هم درکړي دِي چه تا
سوال کړي نه دیَ هم دولت هم عزّت څو چه ستا په شان
سړیَ به په بادشاهانو کښ ستا په ټولو ورځو کښ نه وِي
۱۴ ۱۴ او که ته ځما په لاري لاړ شي او ځما حکمونه او ځما فرضونه
وساتي لکه چه داؤد ستا پلار لاړ شه نو زه به ستا ورځي
۱۵ اوږدي کړم ۱۵ نو سلیمان ویښ شه او ګوره هغه خوب وه
او اورشلیم ته راغي او دَ خداوند دَ عهد دَ صندوق دَ
وړاندِ ودریده او سیزونکي قرباني ئي وخیژولي او دَ سلامتي
نذرونه ئي و خیژول او دَ خپلو ټولو نوکرانو دَپاره ئي میلمستیا
وکړه

۱٦ ۱٦ هغه وقت دوه زانیاني ښځي بادشاه ته راغلي او دَده
۱۷ دَ وړاندِ ودریدلي ۱۷ نو هغي یوي ښځي و ویل چه اي خاوندَ
عرض لرم چه زه او دا ښځه په یوه کور کښ اوسیدونکي یو

او ما له دي سره په يوه كور كښې وزيږوه ۱۸ او په دريمي ورځي ۱۸
پس له زيږولوځما: دي ښځي هم وزيږاوه او مونږ سره وُو
او په هغه كوركښې بيگانه بي له مونږ دواړو نه: را سره نه وه
په هغه كور كښې ۱۹ نو دَ دغي ښځي ځوي په شپي كښې مړ شه ۱۹
ځكه چه دا په هغه ځملا ستله ۲۰ نو دا په نيمي شپي كښې پورته ۲۰
شوله او ځما ځوي يُ ځما له څنگ نه واخست او ستا وينځه
اوده وه او هغه يُ په خپلي غيږ كښې ځملاوه او خپل مړ
ځوي يُ ځما په غيږ كښې ځملاوه ۲۱ او هركله چه زه صبا پورته ۲۱
شوم چه خپل زوي له تي وركړم او گوره هغه مړ وه او ما
دَ هغه په صبا تميز وكړ او گوره هغه ځما زوي نه وه چه
زيږولي مِ وه ۲۲ او هغي بلي ښځي وويل چه نه بلكه ځما ځوي ۲۲
دغه ژوندي دیَ او ستا زوي هغه مړ دیَ او دغي وويل نه
بلكه ستا ځوي هغه مړ دیَ او ځما زوي هغه ژوندي دیَ او
دغو دَ بادشاه دَ وړاندِ خبري كولي ۲۳ نو بادشاه وويل چه ۲۳
دا وايِي چه دغه ژونديَ زوي ځما دیَ او دغه مړ ستا زوي
دیَ او دا وايِي نه بلكه ستا زوي دغه مړ دیَ او ځما زوي دا
ژونديَ دیَ ۲۴ او بادشاه وويل ما ته تُوره راوړيُ او هغو دَ ۲۴
بادشاه دَ وړاندِ تُوره راوره ۲۵ نو بادشاه وويل چه دا ژوندي ۲۵
هلك دوه ټكړي كړيُ او نيم يوي ته او نيم بلي ته وركړيُ -
۲۶ نو هغي ښځي چه زوي يُ ژوندي وه بادشاه ته خبره وكړه ځكه ۲۶
چه دَدي كُلمي په خپل ځوي جوش وكړ و يُ ويل عرض لرم
اي خاونده هغه ژوندي هلك هغي ته وركړه او په مرگ سره
يُ مه مړ كوه ليكن دغي وويل چه نه دِ ځما وِي او نه دِ ستا
وِي دوه ټكړي يُ كړيُ ۲۷ نو بادشاه ځواب وركړ و يُ ويل چه ۲۷
هغه ژوندي هلك هغي ته وركړيُ او په مرگ سره يُ مه مړ كويُ

۲۸ ځکه چه دا يئ مور دَه ۲۸ اوچه ټول اسرائيل هغه عدالت
چه بادشاه حکم وکړ واوريدهٔ نو دَ بادشاه له مخ ويريدل ځکه چه دوئ
وليدل چه په هغه کښ حکمت دَ الله دَ عدالت جارِي کولو دَ پاره ورسره
وه ؛

# څلورم باب

۱ ۱ او سليمان بادشاه په ټول اسرائيل بادشاهِي کوله او دا
۲ هغه سرداران دِي چه دَده وُو ۲ عزرياهو بني صدوق کوهين
۳ ۳ اليحورف او اخيا زامن دَ شيشا کاتبان يهوشافات بن
۴ اخيلود واقعه نويس ۴ او بناياهو بن يهوياداع په لښکر باندِ
۵ او صدوق او ابياثار کوهينان وُو ۵ او عزرياهو بن ناثان
په نوکرانو باندِ او زابود بن ناثان کوهن رفيق دَ بادشاه وه
۶ ۶ او اخيشار په کور باندِ او ادونيرام بن عبدا په خراج
۷ ۷ او دَ سليمان په ټول اسرائيل باندِ دولس منصبداران
وُو چه دَ بادشاه اودَده کور ته به يئ خواره رسول يو مياشت
۸ په کال کښ په يوه باندِ دَ خوارو رسول وُو ۸ او دا يئ نومونه
۹ دِي بن حور دَ افرايم په کوهستان کښ ۹ بن دقر په ماقص
کښ او په شعليم او په بيت شمس او په ايلون بيت حانان -
۱۰ ۱۰ بن حسد په اربوث کښ ورته شوکوه او ټوله زمکه دَ حافر
۱۱ وه ۱۱ بن ابيناداب په ټول نافث دور کښ طافته لور دَ سليمان
۱۲ دَ دغه ښځه وه ۱۲ بعنا بن اخيلود په تعنک او په مجدو او په
ټول بيت شان کښ دَ څريثان په څنګ کښ تر يزرعيل لاندِ
۱۳ له بيتِ شان تر آبيل محولا تر يقمعام تر کودره پوري ۱۳ بن جبر
په راموث جلعاد کښ ورته حوّوث ئيار بن منسي چه په جلعاد
کښ او ده لره وطن دَ ارحوب چه دَ بادشاه شپيته لوي ښهرونه
۱۴ چه ديوالونه ګرد ګرد او ارمونه يئ دَ زيړو ۱۴ اخيناداب بن عدو

په محنايم کښې ۱۵ اخيمعص په نفتالي کښې او دغه هم باسمت لور دَ ۱۵
سليمان ئې ښځه واخستله ۱۶ بعنا بن حوشاي په آشير کښې او ۱۶
په عالوت کښې ۱۷ يهوشافاط بن پاروح په يسّاکر کښې ۱۸ شمعي ۱۷ ۱۸
بن ايلا په بنيامين کښې ۱۹ جابر بن اوري دَ جلعاد په زمکه کښې ۱۹
زمکه دَ سيحون بادشاه دَ اموريانو او عوج بادشاه دَ باشان
او دا يو منصب چه په هغه زمکه کښې وه ۲۰ يهودا او اسرائيل ۲۰
دَ هغو شګو په شان چه په درياب کښې په کثرت کښې وي
ډير وه خوړل او څښل او خوشحالي به ئې کوله ۲۱ او سليمان ۲۱
په ټولو بادشاهتونو حکومت کاوه له درياب نه دَ فلسطين
تر زمکي او دَ مصر تر سرحدونو او هغوي به ده ته پيشکشي
راوړلي او دَ سليمان خدمت به ئې کاوه ټولي ورځي دَ ژوندانه
دَ ده ۲۲ او دَ سليمان دَ يوي ورځي خوراک ديرش کُرَّ ميده او ۲۲
شپيته کُرَّ اوړه ۲۳ او لس څاربه سخوندران او شل غوايان له ۲۳
چراګاهونو او يو سل مېږونه سوا له غرځينو او له هوسيو او
آهوانو او دَ ساتلي مرغانو ۲۴ ځکه چه ده په هغو ټولو چه له ۲۴
درياب پوري خوا وُو راج کاوه له تفسح تر غزّه پوري په ټولو
بادشاهانو چه پوري خوا دَ درياب وُو او له هغو ټولو سره ئې
صلح وه چه دَ ده په ګرداګرد وُو ۲۵ او يهودا او اسرائيل په امن ۲۵
سره اوسيدل او هر يو تر خپل تاکستان لاندې او تر خپل انځير
لاندې له دان تر بيرسبع پوري ټولي ورځي دَ سليمان ۲۶ او دَ ۲۶
سليمان څلويښت زره طبيلي دَ آسونو دَ ګاډيو خپلو دَ پاره وي
او دولس زره سواره ۲۷ او دغو منصبدارانو به سليمان بادشاه ۲۷
ته خرڅ رساوه او هغو ټولو ته چه دَ سليمان بادشاه خوانچي
ته قريب راغلل هر يو په خپلي مياشتي کښې دوي دَ هيڅ څيز
حاجت نه پرېښود ۲۸ او اوربشي او پروړه دَ آسونو او دَ ګړندو ۲۸

دَپاره راورِي هغه مقام ته چه په کښې به لکه دَ هره يوه
۲۹ بندوبست وه ۲۹ او الله سليمان ته بيحده ډير حکمت او فهم
ورکړ او دَ زړه پلن والي دَ هغو شګو په شان چه په غاړي
۳۰ دَ درياب وِي ۳۰ او دَ سليمان حکمت دَ ټولو بني مشرقيانو له
۳۱ حکمت نه ډير وه او له ټوله حکمتَ دَ مصريانو ۳۱ او له ټولو
آدم زاتو زيات دانا وه له ايتان ازراحِي نه او له هيمان نه
۳۲ او له کلکولَ او له دردعه بن ماحولَ ۳۲ او دَده نُوم په ټولو
قومونو کښې چارچاپيره وه او په دري زره متلونه ئي خبري
۳۳ وکړي او غزل ئي يو زر پنځه وُو ۳۳ او ده له ونو خبري وکړي
له لمنځو چه په لبنان کښې وي تر زوفا پوري چه په ديوالونو
کښې ټوکيږي او ده له حيوانانو او له مرغانو او له ځځيدونکو او له کبانو
۳۴ خبري وکړي ۳۴ او له ټولو خلقو به ورته راتلل چه دَ سليمان حکمت
واورِي له ټولو بادشاهانو له زمکي هغوي چه دَده حکمت ئي اوريده*

# پنځم باب

۱ آ او حيرام بادشاه دَ صور خپل نوکرانِ سليمان ته واستول
ځکه چه ده واوريدل چه هغو دَي دَ بادشاهيُ دَپاره مسح کړ
دَده دَ پلار په ځاي ځکه چه حيرام ټولي ورځي دَ داؤد دوست
۲ وه ۲ نو سليمان حيرام ته واستوه وئي ويل ۳ چه ته ځما پلار
داؤد پيژنِي چه دَي نه توانيده چه دَ خداوند خپل الله په نوم
يو کور بنا کړي په سبب دَ هغو جنګونو چه په ده چاپيره شول
ځو چه هغوي خداوند دَده دَ پښو تر ځپرو دَ لاندِ کيښودل
۴ ۴ او اوس خداوند الله ما ته له ټولو طرفونو آرام راکړ چه
۵ نـه شيطان او نه واقع دَ بديُ شته ۵ او ګوره ويونکي يم
دَکور دَ بناکولو دَپاره په نوم دَ خداوند الله ځما لکه چـه

خداوند خما پلار داؤد ته کلام وکړ و ئي ويل چه ستا هغه
زوي چه ستا په ځاي ستا په تخت کښينوم هم هغه به خما
دَ نامه دَپاره هغه کور بنا کړي ٦ او اوس و فرمايه چه خما ٦
دَپاره له لبنان نه لمنځه پرېکړي او خما نوکران به ستا له
نوکرانو سره وِي او زه به ستا دَ نوکرانو مزدوري تا ته درکړم
موافق دَ هغه ټول چه ته ووايي ځکه چه ته پوهيږي چه خمونږ
په مينځ کښ پوهان سړي نشته چه دَ صيدونيانو په شان
لرګي پريکوي ٧ او چه حيرام دَ سليمان خبره واوريدله ډير ٧
خوشحاله شه و ئي ويل چه نن ورځ دِ خداوند مبارک وِي چه
داؤد ته ئي په ډير امّت باندِ دانا زوي ورکړ ٨ او حيرام سليمان ٨
ته واستاوه و ئي ويل چه ما هغه چه راته دِ واستاوه آوريدلي
دِي زه به ستا دَ ټولي خوښيِ په موافق دَ لمنځو په لرګو
او دَ نښترو په لرګو وکړم ٩ خما نوکران به دغه له لبنان نه ٩
درياب ته راکوز کړي او زه به په درياب کښ بيړيِ جالي
جوړي کړم تر هغه ځايَ پوري چه ته ئي ما ته مقرّر کړي
او هلته به ئي تار په تار کړم او ته به هغه پورته کړي او ته
به خما خوښي په ورکولو دَ ډوډيِ خما کور ته وکړي ١٠ نو حيرام ١٠
سليمان ته لرګي دَ لمنځو او لرګي دَ نښترو موافق دَ خوښيِ
دَده ورکول ١١ او سليمان حيرام ته شل زره کُرّه غنم خوراک ١١
دَده دَ کور دَپاره ورکول او شل کُرّه وهلي شوِي تيل هسي
به سليمان کال په کال حيرام ته ورکول ١٢ او خداوند سليمان ١٢
ته حکمت ورکړ لکه چه ورته ويلي ئي وُو او دَ حيرام او دَ سليمان
په مينځ کښ صلح وه او دوي دواړو سره عهد وتاړه
١٣ او سليمان بادشاه له ټولو اسرائيلو بيګار واخست ١٣
او هغه بيګار ديرش زره سړي وُو ١٤ او هغوي ئي لبنان ته ١٤

واستول او په هري مياشتي کښں به لس زره وار په وار تله
او هغوي به يوه مياشت په لبنان کښں وُو او دوه مياشتي به په
١٥ خپلو کورونو کښں وُو او ادونيرام په هغه بيګار باندِ وه ١٥ او
سليمان لره اويا زره وُو چه بارونه به ئي پورته کول او اتيا زره
١٦ چه په غره کښں پريکونکي وُو ١٦ بي له سردارانو چه دَ سليمان
منصب داران وُو هغوي چه په کار باندِ وُو دري زره او دري
سوه چه په هغه اُمّت ئي راج ګيرِي کوله چه دَ کار کوونکي وُو
١٧ ١٧ او بادشاه وفرمايل چه ډير کاڼري دِ وکاږي قيمت بها کاڼري دَ
١٨ بيت دَ بنياد ږدلو دَپاره سکښتلي شوي کاڼري ١٨ او دَ سليمان
معمارانو او دَ حيرام معمارانو او سنګ تراشانو هغه تراشل
او لرګي او کاڼري ئي دَ بيت دَ بناکولو دَپاره تيارول ❖

# شپږم باب

١ ١ او په څلور سوه اتيا کاله دَ اسرائيل دَ وتلو دَ مصر له
زمکي نه داسي وشول په څلورم کال دَ سليمان دَ بادشاهيِ په
اسرائيل باندِ دَ زيو په مياشت کښں چه هغه دريمه مياشت
٢ ده نو هغه خداوند ته بيت بناکړ ٢ او هغه بيت چه سليمان
بادشاه خداوند ته جوړ کړ اوږدوالي ئي شپيته هاتي او پلنوالي
٣ ئي شل هاتي او هسکوالي ئي ديرش هاتي ٣ او دهليز دَ بيت
دَ هيکل دَ وړاندِ اوږدوالي ئي شل هاتي دَ بيت دَ پلنوِالي په
٤ مخ او پلنوالي ئي لس هاتي دَ بيتَ په مخ کښں ٤ او بيت لره
٥ ئي جهت داري سقفي دريچي جوړي کړي ٥ او دَ بيت په ديوال باندِ
ئي طبق خاني چاپيره له ديوالونو دَ بيت ګرداګرد دَ هيکل او دَ
٦ کلام خاني او دَ هغو په ګرداګرد ئي دري حجري جوړي کړي ٦ هغه
کوزنيِ طبق خانه پلنوالي ئي پنځه هاتي او هغه مينځنيِ پلنوالي ئي

شپږ هاتۍ او دريمه پلن والې ئې اوه هاتۍ خلکه چه بيت لره ئې
چاپيره دَ بهر له طرف تکي ورکړلي هسي نه چه اخستنه
دَ بيت په ديوالونو کښې وِي ٧ او هغه بيت دَ ده په بناکيدلو ٧
کښې سليم کاڼيِ دَکان له سنګ جوړ شوي وُو او په بيت کښې
دَده دَ بِنا کولو په وقت دَ څټک او دَ تبر او دَ اوسپنې دَ
کالي آواز آوريدلي نه شه ٨ او دَ مينځ دړي حجري دروازه دَ ٨
بيت په ښۍ اوړي وه او دوي به په پيچ دارو زينو مينځنۍ ته
ختل او له مينځنۍ نه به دريمي ته ٩ نو هغه بيت ئې بنا کړ ٩
او پوره ئې کړ او هغه کور ئې په تختو او په صفونو دَ ديارو
ئې پټ کړ ١٠ او طبق خانې ئې په هغې ټول بيت کښې بِنا کړي ١٠
اوچت والې ئې پنځه هاتۍ او له کورئ دَ لمنځو په لرګو سره
پيوست کړي ١١ او دَ خداوند کلام سليمان ته راغې وئې ويل ١٢ ١١ ١٢
چه دا هغه بيت دې چه ته ئې بِنا کونکې يې که ته ځما په حکمونو
لاړ شې او ځما عدالتونه په عمل راوړې او ټول فرضونه ځما
وساتې چه په هغو تلل کوې نو زه به له تا سره هغه کلام
قايم کړم چه ستا پلار داؤد ته مِ کلام وکړ ١٣ او زه به دَ ١٣
بني اسرائيل په منځ کښې سکونت وکړم او خپل اُمّت اسرائيل
به پرې نه ږدم

١٤ نو سليمان هغه بيت بنا کړ او پوره ئې کړ ١٥ او دَ ١٤ ١٥
بيت ديوالونه ئې دننه دَ لمنځي په لرګو بنا کړل دَ بيت له زمکې
دَ چت تر ديوالونو پورې او دننه طرف ته ئې په لرګو پټ کړ او
دَ بيت زمکه ئې دَ نښتر په تختو پټه کړه ١٦ او دَ بيت ورستو ١٦
طرف ئې شل هاتۍ بنا کړ دَ لمنځو په تختو سره له زمکې تر ديوالونو
پورې او ورته دننه ئې بنا کړ دَ کلام خانې دَ پاره يعني قدس
الاقدس ١٧ او هغه بيت هغه هيکل چه دَده دَ وړاندې وه ١٧

۱۸ ځلوېښت هاتي وه ۱۸ او لمنځه دَ بيت په دَننه نقش کړي شوي
وه په ختکيو او په غوړېدلو ګلونو او دا ټول دَ لمنځي وه
۱۹ هيڅ کاڼړي نه ښکارېده ۱۹ او دِ بيت په مېنځ کښې ئُ کلام خانه تياره کړه
۲۰ چه دَ خداوند دَ عهد صندوق هلته کښې کېږدي ۲۰ او دَ
کلام خاني له مخَ شل هاتي اوږد او شل هاتي پلن او شل هاتي
ئُ اوچت والي وه او هغه ئُ په سوچه ؤ سرو زرو پټ کړ او
۲۱ مذبح ئُ په لمنځي سره پټه کړه ۲۱ او سليمان هغه بيت
دننه طرف ته په سوچه ؤ سرو زرو پټ کړ او دَ سرو زرو
ځنځيرونو ئُ پورې راپوري دَ کلام خاني په مخ کښې وتاړه او په سرو
۲۲ زرو ئُ پټ کړل ۲۲ او ټول بيت ئُ په سرو زرو پټ کړ دَ ټول
بيت تر تماميدلو پوري او هغه ټوله مذبح چه کلام خاني ته وه
۲۳ په سرو زرو ئُ پټه کړه ۲۳ او په کلام خاني کښې ئُ دَ زيتون دَ
۲۴ لرګي دوه کروبيم جوړ کړل اوچتوالي دَ ده لس هاتي ۲۴ او دَ يوې
کروبي وزر پنځه هاتي او دَ بلي کروبي وزر پنځه هاتي لس هاتي
۲۵ دَ ده دَ وزر له حدونو تر هغي دَ وزرو پورې ۲۵ او بله کروبي
۲۶ لس هاتي يو کچ او يوه اندازه دَ دواړو کروبيانو ۲۶ او اوچتوالي
۲۷ دَ يوې کروبي لس هاتي هسې دَ بلي کروبي ۲۷ او دننه بيت په
مېنځ کښې ئُ کروبيان کېښودل او دَ کروبيانو وزرونه غوړولي وُو
او دَ يوه وزر له ديوال سره لګيدل او دَ بلي کروبي وزرونه
په بل ديوال لګيده او دَ دوي وزرونه دَ بيت په مېنځ کښې لګيدل
۲۸ وزر په وزر ۲۸ او هغه کروبيان ئُ په سرو زرو کښې پټ کړل
۲۹ ۲۹ او ټول ديوالونه دَ بيت چاپېره په نقشونو دَ کروبيم او دَ کجورو
وني او په غوړيدلو ګلونو له دننه لوري او له بهره لوري ئُ
۳۰ نقش وکښود ۳۰ او دَ هغه بيت زمکه ئُ په سرو زرو له دننه
۳۱ لوري او له بهره لوري پټه کړله ۳۱ او دَ کلام خاني مدخل له

ئې دَ زيتون له لرګي نه دروازې جوړې کړې آستانې او درشلې
ئې پنځه کوټيزې وې ٣٢ او دواړه دروازې ئې دَ زيتون له لرګي ٣٢
وې او په هغو باندې ئې دَ کروبيم او دَ کجورې ونې او دَ غوړيدلو
ګلونو نقش کنودلي وه په سرو زرو ئې پټ کړل او په کروبيم
باندې او په کجورې باندې ئې سره زر وغوړاول ٣٣ او هسې ٣٣
ئې دَ هيکل دَ مدخل درشلې ئې دَ څلور کوټيزې لرګي دَ زيتون
نه جوړې کړې ٣٤ او دَده دروازې دَ نښتر له لرګي وې دَ يوې ٣٤
دروازې دوه پلې وې ګرزيدونکي او دَ بلې دروازې دوه پلې
ګرزيدونکي ٣٥ او کروبيم او دَ کجورو ونې او دَ غوړيدلو ګلونه ٣٥
په نقش کنودلي او په سرو زرو ئې پټ کړل برابر کړې شوې
په تراشلو ساز کړې شوې وُو ٣٦ او اندروني غولې ئې درې ٣٦
صفونه دَ تراشلې کاڼې او يو صف دَ لمنځې له بينشونو نه بنا
کړ ٣٧ په څلورم کال کښې دَ زيو په مياشت کښې دَ يهوه دَ ٣٧
بيت بنياد کيښود شه ٣٨ او په يولسم کال کښې دَ بول په مياشت کښې ٣٨
چه هغه اتمه مياشت ده هغه بيت په ټولو خبرو او په ټولو
حکمونو کښې پوره کړې شه نو هغه ئې په اوو کالو کښې بنا کړ ۞

# اوم باب

١ او سليمان خپل کور په ديارلس کالو کښې بنا کړ او خپل ١
ټول کور ئې پوره کړ ٢ او دَ لبنان دَ ځنګل کور ئې بنا کړ او ٢
اوږد والې ئې سل هاتې او پلن والې ئې پنځوس هاتې او اوچت والې
ئې ديرش هاتې په څلورو صفونو دَ لمنځو له ستنو او دَ
لمنځو بينشونه په ستنو باندې ٣ او په لمنځې پټ کړې شه ٣
دَ پاسه په هغو پښتيو چه په پنځه څلويښتو باندې وې هر صف
پنځه لس وې ٤ او کتل په درې صفونو وُو او دريچه په مخامخ ٤

۵ دَ دریڅي په درې واره ۵ او ټولي دروازي او درشلي څلورکونجي
چت کړي شوي او مخ دَ هغي دریڅي په مخامخ دَ دریڅي په درې
۶ واره ۶ او دَ ستنیو دَ دهلیز ئي جوړ کړ اوږدوالي ئي پنځوس
هاتي او پلنوالي ئي دیرش هاتي او بل دهلیز دَ هغوي دَ
۷ وړاندِ او ستني او پوړيِ دَ هغوي دَ وړاندِ ۷ او دَ دهلیز
تخت ئي جوړ کړ چه هلته به عدالت وکړي دهلیز دَ عدالت
۸ او له زمکي ئي تر بامَ پوري په لمنځي سره پټ کړه ۸ اوخپل
کور ئي چه هلته به اوسِي په غولي دَ بل کور دَ دهلیز وخوا
ته وه لکه دَدي کار هسي وه او یو کور ئي دَ فرعون دَ لور
دَپاره جوړ کړ هغه چه سلیمان واخستله لکه دَدي دهلیز
۹ په شان ۹ دا ټول دَ ګران بها کاڼیو په اندازه سره دَ تراشلیو
کاڼیو ځیري شوي په ارو له دننه او له بهرَ له بنیادَ تر
۱۰ کنګري پوري او له بهرَ تر لوي غولي پوري ۱۰ او بنیاد ئي دَګران بها
کاڼیو دَ لویو کاڼیو دَ لسو هاتو دَ کاڼیو او دَ اتو هاتو دَ کاڼیو
۱۱ وه ۱۱ او پرِ دپاسه ګران بها کاڼيِ دَ اندازي په موافق تراشلي
۱۲ او دَ لمنځو وُو ۱۲ او دَ لوي غولِي په ګرداګرد ئي درې صفونه دَ
تراشلیو کاڼو او یو صف له بینشونو دَ لمنځو هم دَ یهوه
دَ بیت دننه غولي هم دَ بیت دَدهلیز دَپاره
۱۳ ۱۳ او سلیمان بادشاه واستوه اوحیرام ئي له صوره
۱۴ واخست ۱۴ هغه دَ کُندي ښځي زوي وه له فرقي دَ نفتالي
او پلار ئي دَ صور سړيَ تمبار دَ زیړو وه او هغه له حکمت
او له فهمَ او له پوهي ډک وه دَ کارکولو. دَپاره دَ ټولي کاریګرئ
په زیړو نو هغه بادشاه سلیمان ته راغي او په هغه ټول کار
۱۵ ئي عمل کاوه ۱۵ او ده دوه ستني دَ زیړو جوړي کړي او اوږدوالي
دَ هري یوي ستني اتلس هاتي وه او سپنږِي دولس هاتي

دَ هر يوې دويمه ئې گردش کاوه ۱۶ او دوه کوترې ئې جوړې کړې ۱۶
چه دَ ويلې شوېو ستنو دَ زېړو په سر ئې کېښودې اوچتوالی
دَ يوې کوترې پنځه هاتې او اوچتوالی دَ بلې کوترې پنځه هاتې
وه ۱۷ او شبکې کاريگرې دَ شبکې او پېچ وخمه کاريگرې په شان ۱۷
دَ زنځيرونو دَ هغو کوترو دَپاره چه په سر دَ ستنيو وې
جوړې کړې اوه يوې کوترې لره او اوه بلې کوترې لره ۱۸ او ستنې ۱۸
ئې جوړې کړې او دوه صفونه گرداگرد په يوې شبکې دَ کوترې
دَ پټولو دَپاره چه په سر دَ انارونو وُو او همسې ئې دَ
بلې کوترې دَپاره وکړه ۱۹ او هغه دوه کوترې چه په سر دَ ۱۹
ستنيو وې دَ سوسن کاريگرې په دهليز کښې دَ څلورو
هاتو وه ۲۰ او کوترې په هغو دوو ستنيو وې هم دَپاسه په ۲۰
هغه گېډې څخه دَ شبکې پورې راپورې وې او هغه انارونه
دوه سوه په صفونو چاپېر شوې په دويمې کوترې وُو ۲۱ او ۲۱
هغه ستنه ئې دَ هيکل په دهليز کښې ودروله او هغه
ښئې ستنه ئې ودراوله او دَ هغې نوم ئې ياکين وباله او کڼه
ستنې ئې ودراوله او دَ هغې نوم ئې بُعز وباله ۲۲ او په سر ۲۲
دَ ستنيو دَ سوسن کاريگرې وه او دَ هغو ستنيو کار پوره
شه

۲۳ بيائې ويلې کړې شوې درياب جوړ کړ او هغه له ۲۳
يوې شونډې تر بلې شونډې پورې لس هاتې او هغه چاپېره
غونډيدار وه او اوچتوالی ئې پنځه هاتې او دَ ديرشو هاتو مزې
په هغه گرداگرد گرزيده ۲۴ او تر شونډې دَ لاندِ ئې گرداگرد ۲۴
څټکې وُو چه په هغه لَس هاتې گرزيدلې دَ درياب په گرداگِرد
ئې دوه صفونه دَ څټکو چه په توېولو سره (په قالب) توې شوې
وُو ۲۵ او هغه په دوه لسو غوايانو باندِ ئېښې شوې وه درې دَ ۲۵

شمال په لوري مخامخ وُو او درې مشرق ته مخامخ وُو او درې
جنوب ته مخامخ وُو او درې مغرب ته مخامخ وُو او درياب په
۲۶ هغو دپاسه وه او ټول ورستي ئې د دننه په لوري وُو ۲۶ او
غټوالي ئې يو څپق او د هغه د شونډي کاريګري لکه د شونډي
د کاسي وه د سوسن په ګل سره روښانه دوه زره بټ په کښ
۲۷ ځائيدل ۲۷ او لس کُرسئ جوړي کړي د يوې کرسئ
اوږدوالي څلور هاتي او پلنوالي ئې څلور هاتي او اوچتوالي
۲۸ ئې درې هاتي ۲۸ او دا د کرسيو کاريګري وه چه هغه لره ډالونه
۲۹ وُو او ډالونه د هغو بندونو په منځ کښ ۲۹ او په هغو ډالونو
چه د هغو د بندونو په مينځ کښ وُو زمري او غوايان او
کروبيم وُو او په بندونو باندې ئې هم هسي له پاس او له لاندې
۳۰ زمري او غوايان هارونه څوړند جوړ کړي وُو ۳۰ او هري کرسئ
لره څلور څرخونه د زيړو او لټونه د زيړو او د هغو څلورو
پايو لره اوږي وي او هغه اوږي تر حوض د لاندې ويلي شوي
۳۱ وې د هر يوه په پوري رايوري هارونه وُو ۳۱ او د هغه
خوله په کوټري دننه او له پاسه يوه هاته وه او د هغه خوله
غونډيداره وه له هسي کاريګرئ سره يوه هاته او نيمه هاته
او هم د هغو په خُلې نقشونه وُو او د هغو ډالونه څلور کُنجه
۳۲ نه غونډيدار ۳۲ او هغه څلور څرخونه تر ډالونو لاندې وُو او
د څرخونو تيرونه په کرسئ کښ وُو او د يوه څرخ اوچتوالي
۳۳ يوه هاته او نيمه هاته ۳۳ او کاريګري د څرخ لکه کاريګري د څرخ
د ګاډي د هغو تيرونه او دائري او د هغو اريري او د هغو
۳۴ څرخونه ټول ويلي شوي وُو ۳۴ او څلور اوږي په څلورو کونجو
۳۵ د هري يوې کرسئ وي او اوږي ئې له خپلي کرسئ وي ۳۵ او په
سر د کرسئ غونډيدار ګردش وه په اوچتوالي د نيمي هاتي او

له پاسَ دَ سر دَ کرسئِ دَ هغو لاسونه او دَ هغو ډالونه له هغو
نه وُو ٣٦ او ده په لوحو باندِ دَ هغو لاسونه نقش دار کړل او په ٣٦
ډالونو ئي کروبيم او زمرِي او دَ کجورو وني لکه عرصه دَ هر يوه
او کِردا کِرد ئي هارونه وُو ٣٧ هم هسي ئي لس کرسئِ جوړي کړي ٣٧
هغو ټولو لره يو قالب او يوه اندازه او يوه سکښتنه وه -
او لس حوضونه ئي له زيړو جوړ کړل په هر حوض کښ څلويښت ٣٨
بتّه ځائيدل هر يو حوض څلور هاتي يو حوض په هري يوي
کرسئِ په هغو څلورو کرسيو باندِ ٣٩ او پنځه کرسي ئي دَ ٣٩
بيت په ښئ اوړي کيښودلي او پنځه ئي دَ کور په کيڼړي اوړي
او دَرياب ئي دَ بيت په ښئ اوړي مشرق ته دَ جنوب په طرف
کيښود ٤٠ او حيرام حوضونه او يومونه او لوښي جوړ کړل او حيرام ٤٠
له هغه ټولي کاريګرئِ کولو نه چه ده سليمان بادشاه ته بيت
دَ يهوه دَپاره وکړ وزګار شه ٤١ دوه ستني او ګولئِ دَ هغي ٤١
کوټري چه په سر دَ دوي ستنيو وي او دوه شبکي چه دَ کوټرو
دَ دوي ګولي دَ پټولو دَپاره وي چه په سر دَ ستني وي ٤٢ او ٤٢
څلور سوه انار دَ هغو دوو شبکيو هغه دوه صفونه دَ انارو
په هري يوي شبکي دَپاره دَ پټولو دَ هغو دوو ګوليو دَ کوټرو
چه په مخ دَ ستنيو وي ٤٣ او لس کرسئ او هغه لس حوضونه ٤٣
په هغو کرسيو باندِ ٤٤ او هغه يو درياب او هغه دولس ٤٤
غوايان تر هغه درياب دَ لاندِ ٤٥ او هغه کټوئِ او هغه يومونه ٤٥
او هغه کټورِي او دا ټول کالِي دَ مسکن چه حيرام دَ سليمان
بادشاه دَپاره دَ بيت دَ يهوه دَپاره جوړ کړل دغه له صيقل
کړي شوِي زيړو ٤٦ دَ اردن په ميدان په منځيني خاوري کښ ٤٦
دَ سقوط او دَ څرتان په مينځ کښ بادشاه ويلي کړل ٤٧ او ٤٧
سليمان دَ ټولو کالو وزن پريښود ځکه چه دا بيحده ډير وُو دَ

۴۸ هغو زيړو وزن لټول نه کيده ۴۸ او سليمان ټول کالي چه دَ
بيت دَ يهوه وُو هغه مذبح دَ سرو زرو او خوانچه دَ سرو
۴۹ زرو چه دَ نذر ډوډيِ په هغي باندِ وي جوړي کړي ۴۹ او ډيوټونه
پنځه په ښي لوري او پنځه په کيڼ لوري او دَ کلام‌خاني دَ وړاندِ
دَ سوچه‌ؤ سرو زرو او هغه گولونه او هغه ډيوي او هغه
۵۰ نوسي دَ سرو زرو ۵۰ او هغه لوښي او هغه گلگيرونه او
هغه کټوري او هغه ځمڅي او هغه مجمرونه له سوچه‌ؤ سرو
زرو او قبضي دَ سرو زرو دَ اندروني بيت دَ قُدسُ الاَقدَس
۵۱ دَ دروازو دَپاره او دَ هغه بيت هيکل دَ دروازو دَپاره ۵۱ او
هغه ټول کار چه سليمان بادشاه دَ بيت دَ يهوه دَپاره کاوه تمام شه
او سليمان دَخپل پلار داؤد مقدس څيزونه هغه سپين او هغه سره
زر او هغه کالي نه‌يستل او دَ بيت دَ يهوه په خزانو کښ ئي کيښودل‡

# اتم باب

۱ آ هغه وقت سليمان دَ اسرائيل سپين‌ږيري جمع کړل او ټول
سرداران دَ فرقو اميران دَ پلارونو له بني‌اسرائيل سليمان بادشاه
ته په اورشليم کښ چه صندوق دَ عهد دَ خداوند دَ داؤد
۲ له ښهره چه صيحون دئ را وخيژوي ۲ نو سليمان بادشاه ته
ټول سړي دَ اسرائيل په عيد کښ دَ ايثانيم په مياشت کښ
۳ چه هغه اومه مياشت ده جمع شول ۳ او ټول سپين‌ږيري
۴ دَ اسرائيل راغلل او کوهنانو صندوق واخست ۴ او دَ خداوند
صندوق ئي وخيژاوه او خيمه دَ جماعت او هغه ټول پاک کالي
چه په مسکن کښ وُو او هغه کوهينانو او لاويانو وخيژول
۵ ۵ او سليمان بادشاه او ټول جماعت دَ اسرائيل چه هغه
نه ورجمع شوي وو دَ خداوند دَ صندوق دَ وړاند له کېږو

او له غوایانو به ئې ذبح کول چه دَ کثرت په سبب ئې شمار او حساب
نه کیده ۶ او کوهینانو صندوق دَ عهد دَ خداوند خپل ۶
مقام ته ننه یست دَ بیت وکلام خانې ته په قُدُسُ الاَقدَسُ
کښې دَ کروبیانو تر وزو لاندې ۷ ځکه چه هغه کروبیانو خپل ۷
وزرونه دَ صندوق په مقام غوړولي وُو او هغه کروبیانو
پاس په صندوق او دَ هغه بازوګانو له پاسَ پرِ سیوري کاوه
۸ او بازوګان اوږدول نو دَ بازوګانو سرونه له قدسه دَ ۸
کلام خانې دَ وړاندې ښکاره کیدل او له بهرَنه ښکاره کیدل او دغه ترنن ورځې پورې
هلته دِي ۹ په صندوق کښې هیڅ نه وُو بې له هغو دوو لوحو ۹
دَ کانړیو چه موسیٰ هلته کښې په حُریب کښې کیښودل هرکله
چه خداوند بني اسرائیل سره عهد وتاړه دَ دوي دَ وتلو په
وقت له مصر له زمکي نه ۱۰ او داسي وه هرکله چه کوهینان ۱۰
به له قدسَ وتل نو اوریځې به بیت دَ یهوه ډک کړ ۱۱ او کوهینان ۱۱
نه توانیدل چه دَ خدمت دَپاره ودریږي دَ اوریځې په مخ کښې ځکه
چه جلال دَ خداوند به بیت دَ یهوه ډک کړ
۱۲ هغه وقت سلیمان خبره وکړه خداوند وویل چه دَې ۱۲
به په توره تیاره کښې اوسي ۱۳ ما بنا کونکې بیت ځبله ستا ۱۳
دَپاره بنا کړي دَې یو مکان ستا دَ تمکیدلو دَپاره تر ابدَ پورې
۱۴ او بادشاه خپل مخ وګرزاوه او ټول جماعت ته ئې برکت ورکړ ۱۴
او ټول جماعت دَ اسرائیل ولاړ وه او وئې ویل چه خداوند
الله دَ اسرائیل دِ مبارک وِي چه په خپلې خولې ئې ځما پلار
داؤد ته کلام وکړ او په خپل لاس ئې ډک کړ وئې ویل ۱۶ له ۱۶
هغې ورځې نه چه ما خپل اُمّت اسرائیل له مصرَ را ویوست
نو مې یو ښهر له ټولو فرقو دَ اسرائیل دَ بیت دَ بنا کولو دَپاره
غوره نه کړ چه ځما نوم هلته کښې وِي بلکه داؤد مې غوره

۱۷ کړ چه ځما په اُمت اسرائیل باندِ وِي ۱۷ او ځما دَ پلار دَ داؤد
په زړه کښ وه چه دَ خداوند الله دَ اسرائیل دَ نُوم دَپاره
۱۸ یو بیت بنا کړِي ۱۸ نو خداوند ځما پلار داؤد ته ووَیل دي دَپاره
چه ستا په زړه کښ وُو چه ځما دَ نُوم دَپاره بیت بنا کړِي نو
۱۹ ښه دِ کړِي دِي چه ستا په زړه کښ وُو ۱۹ تش ته به هغه
بیت بنا نه کړِي بلکه ستا زوي چه ستا له پښتَ راووزِي
۲۰ هغه به ځما دَ نوم دَپاره کور بنا کړِي ۲۰ او خداوند خپل کلام
چه کلام ئې وکړ قایم کړ او زه دَ خپل پلار داؤد په ځاي پورته
شوم او دَ اسرائیل په تخت کښیناستم لکه هغه چه خداوند
کلام وکړ او دَ خداوند الله دَ اسرائیل دَ نُوم دَپاره ما بیت بنا
۲۱ کړِي دي ۲۱ او هلته مِ دَ صندوق دَپاره مکان مقرّر کړ چه
هلته عهد دَ خداوند دیَ چه ځمونږ له پلرونو سره ئې پیکړ
هغه وقت چه دوي ئې له مصر له زمکي راوبستل
۲۲ ۲۲ او سلیمان دَ خداوند دَ مذبح دَ وړاندِ مخامخ ټول
جماعت دَ اسرائیل ته ودریده اوخپِي دَ لاسونو ئې آسمان ته
۲۳ وغوړولي ۲۳ و ئې ویل اي خداوند الله دَ اسرائیل ستا په
شان الله پاس په آسمان کښ نشته او نه کوز په زمکه
ساتونکي دَ عهد او دَ مهربانئِ خپلو بندیکانو ته چه ستا
۲۴ دَ وړاندِ په خپلو ټولو زړونو سره تلونکي دِي ۲۴ هغه چه
تا خپل بنده ځما پلار داؤد وساته هغه چه تا ورته کلام
وکړ او تا په خپلي خولي کلام وکړ او په خپل لاس دِ پک کړ
۲۵ لکه نن ورځ ۲۵ او اوس اي خداوندَ الله دَ اسرائیل خپل
بنده ځما پلار داؤد لره هغه وساته چه تا پرِ کلام وکړ
و دِ ویل چه له تا نه به ځما دَ وړاندِ سړي پرِیکړي نه شِي
چه دَ اسرائیل په تخت کښیني تش که ستا زامن خپلي

لاري وساتي چه څما دَ وړاندِ دروِمي لکه چه ته څما دَ وړاندِ
لاړي ۲۶ او اوس اي الله دَ اسرائيل آمين دِ وِي که نه هغه ۲۶
ستا کلام چه خپل بنده څما پلار داؤد ته دِ کلام وکړ ۲۷ څکه ۲۷
چه الله به په رښتيا سره په زمکه باندِ واوسِي څه؟ گوره
آسمانونه او آسمان دَ آسمانونو تا ځايولی نه شي نو څومره لږ
دا بيت چه ما بنا کړي دیَ ۲۸ نو ته دَ خپل بنده دُعا ته او دَده ۲۸
زارئِ ته متوجّه شه اي خداوندَ څما الله چه هغه ناره او دُعا
چه ستا بنده ستا دَ وړاندِ نن ورځ دُعا کوِي واوري ۲۹ چه ۲۹
ستا سترگي په دي بيت باندِ شپه او ورځ پرانتلي وِي هغه
ځاي لره چه تا وويل چه څما نُوم به هلته وِي چه ته هغه دُعا
چه ستا بنده دَدي مقام دَپاره دُعا کوِي واوري ۳۰ او دَخپل ۳۰
بنده زارِي او ستا اسرائيل اُمّت چه تا ته په دي مقام کښ
دُعا کوِي واوره او ته دَ خپلو ځايدلو په مقام کښ له آسمانَ
واوره او چه ته واوري نو وئِ بخښه ۳۱ چه يو سړيَ دَخپل ۳۱
دوست خطا وکړِي او په هغه باندِ قسم کيښود شِي چه هغه
قسم وخورِي او هغه قسم ستا دَ مذبح دَ وړاندِ په دي بيت
کښ راشِي ۳۲ نو ته په آسمان کښ واوره او وکړه او دَ خپلو ۳۲
بندگانو عدالت وکړه چه په شرير باندِ شرارت راوړِي چه دَده
لار دَ هغه په سر کيښودي شِي او چه صادق گڼلي شِي
چه ورته لکه صداقت ئې ورکړي شِي ۳۳ هرکله چه ستا اُمّت ۳۳
اسرائيل دَ دُښمنانو دَ وړاندِ شکست کړي شِي څکه چه دوي ستا
خطا وکړه بيا تا ته وگرزيږِي او ستا په نُوم ئې اقرار وکړ او دُعا
وکړِي او تا ته زارِي وکړِي په دي بيت کښ ۳۴ نو ته له آسمانه ۳۴
واوره او دَ خپل اُمّت اسرائيل خطاوي عفوه کړه هغي خاورِي
ته چه تا دَ دوي پلرونو ته ورکړي ده وئې گرزوه ۳۵ هرکله چه ۳۵

آسمان بند شي او باران نه وِي هرکاه چه دوي ستا خطا کړي دَه
او که دوي دَدي ځاي په لورِي دُعا وکړِي او ستا په نُوم اقرار
وکړِي او له خپلو خطاؤ راوګرزِي هرکاه چه ته هغوي اندوهګين کړي
۳۶ ۳۶ نو ته له آسمانه واوره او دَ خپلو بندګانو او دَ خپل اُمّت
اسرائيل خطا عفوه کړه چه هغه نيکه لار چه دوي په کښې ځي
ورزده کړي او په خپله زمکه کښې باران ورکړي هغه چه تا
۳۷ خپل اُمّت ته په ميراث ورکړه ۳۷ او که په زمکه کښې لوږه وي
که وبا وِي که بادِ سموم وِي او که زيړي وِي ببابانِي ملخ نغروونکي
ملخ وِي او چه دَدوي دَ ښهرونو په زمکه کښې دَ دوي دُښمنان
۳۸ قلعه بند کړِي ټوله وهنه ټول مرض ۳۸ ټوله دُعا او ټوله زارِي چه له
ټوله آدمزاده وشِي ستا له ټول اُمّت اسرائيل چه هر سړي
دَ خپل زړه وهنه وپيژني او خپل دَ لاسونو چيړي دَدي بيت
۳۹ په لورِي وغوړوِي ۳۹ نو ته له آسمانه دَ خپل تمکيدلو له مکانه
واوره او عفوه ئې کړه او کار وکړه او هر سړي ته دَ هغه دَ
ټولو لارو په موافق ورکړه لکه چه ته دَ هغه زړه پيژني (ځکه
۴۰ چه ته يوازي دَ ټول بنيآدم زړونه پيژني) ۴۰ تا چه ستا ويره وکړي
ټولې ورځي چه دوي ژوندون لرِي دَ هغه خاوري په مخ چه
۴۱ خښونږ پلرونو ته دِ ورکړي ۴۱ او هم هغه پردِي لره چه ستا له
اسرائيل اُمّتَ نه دي: هغه چه له لري زمکي ستا دَ نُوم په سبب
۴۲ راشِي ۴۲ (ځکه چه دوي ستا هغه لوي نُوم واورِي او ستا هغه
قوّتناک لاس او ستا هغه اوږد کړي بازو) او هغه چه راشِي
۴۳ او په دي بيت کښې دُعا وکړِي ۴۳ ته له آسمانه دَ خپل تمکيدلو
له مکانه واوره او په موافق دَ ټول چه هغه پردِي تاته دُعا کړِي
وکړه تاچه ټول قومونه دَ زمکي ستا نُوم وپيژني او له تا وويرېږي
لکه چه ستا اُمّت اسرائيل او چه دوي پوه شي چه ستا

نُوم په دي بيت باندِ چه ما بِنا کړِي دئ بللي شوي دي -
۴۴ ۴۴ چه ستا اُمّت دَده دَ دُښمن جنګیدلو ته ووزي په هغه
لاري کښ چه ته په کښ به دوي واستوي او خداوند ته
دُعا وکړِي دَ هغه ښهر په لورِي چه تا غوره کړِي دئ او دَ
۴۵ هغه بيت په لورِي چه ما ستا نُوم ته بِنا کړِي دي ۴۵ نو ته
له آسمانَ دَ هغو دُعا او زارِي واوره او دَدوي عدالت وکړه
۴۶ چه دوي ستا خطا وکړِي (ځکه چه هيڅ آدم‌زاد نشته چه خطا
نه کوِي) او ته په هغوي خپه شي او دَ دُښمنانو مخي ته ئي ورکړِي
او دوي بنديان په بند يوسِي دَ دُښمنانو و زمکي ته چه لري يا
۴۷ نژدي وِي ۴۷ نو چه دوي په هغه زمکه کښ چه په بند لئ
بيولي دِي خپلو زړونو ته وګرزِي او وجاروزِي او تا ته زارِي
وکړِي دَدوي دَ بنديوانئ په زمکه کښ ووايِي چه مونږ خطا
۴۸ کړِي دَه او مونږ بدِي کړِي دَه او شر مو کړِي دئ ۴۸ او تا ته
دوي په خپلو ټولو زړونو سره وګرزِي او له خپلو ټولو ځانونو
دَدوي دَ دُښمنانو په زمکي کښ هغوي چه دوي ئي بنديان
بوتلل او تا ته دُعا وکړِي دَ خپلي زمکي په لورِي چه تا دَدوي
پلرونو ته ورکړه دَ هغه ښهر په لورِي چه تا غوره کړِي دئ او
۴۹ دَ هغه بيت په لورِي چه ما ستا په نُوم بِنا کړِي دئ ۴۹ نو ته
په آسمان کښ دَخپل تمکيدلو له مکانه دَدوي دُعا او دَدوي
۵۰ زارِي واوره او عدالت ئي وکړه ۵۰ او خپل اُمّت له چه دوي
ستا خطا کړِي دَه وبښه او هغه ټول تقصيرونه چه دوي ستا
په خلاف تقصير کړِي دي او دوي ته دَ هغو دَ ورانډِ چه دوي
ئي په بند بوتلل رحمت ورکړه او دوي به په هغو رحم وکړِي
۵۱ ۵۱ ځکه چه دوي ستا اُمّت دِي او ستا ميراث چه له مصرَ
۵۲ دِ را ويوستَ دَ اوسپني دَ آوي له مينځ نه ۵۲ چه ستا سترګي

دِ دَ خپل بنده زاریو ته پرانتلي وِي او ستا دَ اُمّت اسرائیل
زاریو ته نو به نه هغه تول چه دوي دِ بولي واوري ٥٣ ځکه ٥٣
چه تا دوي میراث دَ ټولو قومونو دَ زمکي نه بیل کړل چه تا
ته میراث وِي لکه چه تا دَ خپل بنده موسیٰ په لاس کلام وکړ
هغه وقت چه ځمونږ پلرونه دِ له مصرَ راویستل اي خداونده
یَهُوَه
٥٤ او داسي وشوه هرکله چه سلیمان دُعا کول خداوند ٥٤
ته تمام کړل په دي ټولي دُعا او زاريْ سره نو پاڅیده دَ خداوند
دَ مذبح له وړاندِ نه په خپلو زنګونو باندِ له ټیټیدلو نه او
لاس خپرېئ دَ آسمان په لوري غوړیدلي وي ٥٥ او ودریده او ٥٥
ټول جماعت دَ اسرائیل ته ئي په لوي آواز سره برکت ورکړ وئي ویل
٥٦ خداوند دِ مبارک وِي چه خپل اُمّت اسرائیل ته موافق ٥٦
دَ [illegible]غو ټولو چه کلام ئي وکړ آرام ورکړ یو کلام پرِ نه وت له هغه
ټوله نیکه کلامه چه دَ خپل بنده موسیٰ په لاس ئي کلام وکړ
٥٧ خداوند ځمونږ الله دِ له مونږ سره وِي لکه چه ځمونږ ٥٧
له پلرونو سره وه نه مو دِ پریږدي او نه مو دِ ترک کړي -
٥٨ او ځمونږ زړونو دِ په خپل لوري مایل وکړي تا چه مونږ دَ ده ٥٨
په ټولو لارو کښِ ځو او دده فرضونه او حقونه ئي او دَ ده عدالتونه چه
ځمونږ پلرونو ته ئي په فرض کړي وُو وساتُو ٥٩ او دا کلام ٥٩
څما چه دَ خداوند دَ وړاندِ مِ زاري پرِ وکړه ځمونږ خداوند
الله ته دِ په ورځ او په شپه نژدي شي چه دَ خپل بنده عدالت
او دَ خپل اُمّت اسرائیل عدالت وکړي کلام دَ ورځي دَ هغه
په ورځ کښِ ٦٠ تا چه ټول قومونه دَ زمکي پوه شي چه **یهوه** ٦٠
هم هغه **الله** دَي او بل نشته ٦١ او ستاسو زړه دِ دَ ٦١
خداوند الله ځمونږ سره سالم وِي چه تاسي دَ ده په حقونو

کښې لاړ شيْ او دَ ده فرضونو وساتيْ لکه نن ورځ ۶۲ او بادشاه ۶۲
او ټول اسرائيل ورسره دَ خداوند دَ وړاندِ ذبيحي ذبح کړي
۶۳ او سليمان دَ سلامتي ذبيحي ذبح کړي هغه چه ده خداوند ۶۳
ته ذبح کړي له غوايانو دوه ويشت زره او ګډان يو سل شل
زره او بادشاه او ټول بنيِ اسرائيل دَ خداوند کور خاص کړ
۶۴ په دغي ورځي کښې بادشاه دَ حصار منځ چه دَ وړاندِ دَ بيت ۶۴
دَ يهوه وه مقدّس کړ ځکه چه ده هلته سيزونکي قربانيْ او
دَ هديي قربانيْ او وازګي دَ سلامتيْ دَ قربانيْ په عمل کړلي ځکه
چه هغه مذبح دَ زيړو چه دَ خداوند دَ وړاندِ وه وړوکي وه
چه په کښې سيزونکي قربانيْ او دَ هديي قربانيْ او دَ سلامتيْ
دَ ذبيحو وازګي ځاي شِي ۶۵ او سليمان په هغه وقت کښې ۶۵
عيد وکړ او ټول اسرائيل چه ورسره وُو لوي جماعت له حمات
له ننه وتني دَ مصر تر درياب پوري څوارلس ورځي دَ الله خداوند دَ
وړاندِ اوه ورځي او اوه ورځي ـ څوارلس ورځي ۶۶ او په اتمه ۶۶
ورځي کښې ئي اُمّت رخصت کړ او دوي بادشاه ته مبارکي ورکړه
او خپلو کيږديو ته خوشحاله او خورم دلَ لاړل دَ هغي ټولي نيکيْ
دَپاره چه خداوند له خپل بنده داؤد سره او له خپل اُمّت
اسرائيل سره وکړه ٭

# نهم باب

۱ او داسي وشول چه سليمان دَ بيت دَ يهوه بنا کول او دَ ۱
بادشاه دَ کور او ټول شوق دَ سليمان چه دَي ئي په کولو
خوښ وه پوره کړل ۲ نو خداوند سليمان ته دويم وار ښکاره ۲
شه لکه چه ده ته په جبعون کښې ښکاره شوي وه ۳ او ده ۳
ته خداوند وويل چه ما ستا دُعا او زارِي چه تا دَ وړاندي دِ
زارِي کړي ده اوريدلي دَه دا بيت چه تا بنا کړ چه ځما نُوم تر

ابدَ پوري په کښې وِي مقدّس کړي م دَي او ځما سترګي او ځما زړه
۴ به هٔولي ورځي هلته وِي ته او ته که ځما دَ وړاندِ لاړ شي لکه
چه ستا پلار داؤد لاړ شه په کامل زړه سره او په راستئ
او موافق دَ هر هغه څه چه ما حکم درته فرض وکړ عمل
۵ وکړي او ځما حقونو او عدالتونو وساتئ ة نو زه به ستا دَ
مملکت تخت په اسرائيل باندِ تر ابدَ قايم کړم لکه چه ما
ستا پلار داؤد ته کلام وکړ و م ويل چه تا لره به دَ اسرائيل له
۶ تختَ سړي نيست نه شِي ۶ نو که تاسي ياستاسو زامن ځما
له پيروي کولونه په بېستنه وجاروزي او ځما فرمونه او ځما حقونه چه ما
ستاسو دَ وړاندِ کيښودلي دِي و نه ساتئ بلکه په نورو خدايانو
۷ پسي لاړ شئ او د دوي عبادت او هغوته سجدي وکړئ ۷ نو زه به اسرائيل له
هغي زمکي نه چه ما هغو ته ورکړي دَه پري کړم او دا بيت چه
ما دَ خپل نوُم دَپاره مقدّس کړي دَي له خپلي مخي لري کړم او
۸ اسرائيل به په هٔولو قومونو کښې يو مثال او يوه پيښي شِي ۸ او
دا بيت ( چه عالي دي ) نو هرڅوک چه به پرِ تيريږي تعجّب به
کوِي او شپيلي به ووهِي او و به وايِي چه يهوي ولي له دي
۹ زمکي او له دي بيت سره داسي وکړل ۹ نو و به وايِي ځکه چه
دوي يهوه الله خپل ترک کړ هغه چه دَدوي پلرونه ئ دَ مصر له
زمکي راويستل او نورخدايان ئ ونيول او سجدي ئ ورته وکړي
او عبادت ئ وکړ ځکه يهوي په دوي دا هٔوله بلا راوسته
۱۰ ۱۰ په آخر دَ شلم کال چه سليمان دواړه کورونه بيت دَ
۱۱ يهوه او محل دَ بادشاه جوړ کړل ۱۱ او حيرام بادشاه دَ صور
سليمان ته دَ لمنځ او دَ نښتر لرګي او سره زر دَ هغه دَ هٔولي
خوشحالئ په موافق راليږل په دغه وقت سليمان بادشاه حيرام
۱۲ ته شل ښهرونه په زمکه دَ جليل کښې و بخښل ۱۲ نو حيرام

له صور دَ ښهرونو دَ ليدلو دَپاره چه سليمان ورته بخښلي
وُو را ووت خو دَ هغه په سترګو ښه نه وُو ۱۳ نو وئې ۱۳
وې اې ورورِه دا څه ښهرونه دِي چه تا ما ته بخښلي دِي او
هغه زمکه ئې کابول و بلله تر نن ورځې پورې ۱۴ او حيرام دَ بادشاه ۱۴
دَپاره يو سل شل قنطار سره زر را وليږل
۱۵ او دا دَې سبب دَ بيګار چه سليمان بادشاه هغه ۱۵
واخستل دَپاره دَ جوړولو دَ بيت دَ يهوه او دَ محل خپل
او دَ ملو او دېوال اورشليم او دَ حاصور او دَ مجدّو او دَ جازر
۱۶ دَ مصر بادشاه فرعون راوخوت او جازر ئې واخست او په ۱۶
اور ئې وسوه او کنعانيان ئې قتل کړل چه په هغه ښهر کښې
اوسيدل او هغه ئې خپلې لُور ته چه دَ سليمان ښځه وه دهېځ ورکړ
۱۷ او سليمان جازر او کوزني بيت حوران بنا کړل ۱۸ او بعلة او ۱۷ ۱۸
تدمور دَ بيابان په زمکه کښې ۱۹ او ټول ښهرونه امبارې چه دَ ۱۹
سليمان وُو او ښهرونه دَ ګاډو او ښهرونه دَ سوارو چه دَ سليمان
خوښه او مرضي وه په اورشليم او په لبنان او په ټوله زمکه
دَ بادشاهت کښې ئې بنا کړل ۲۰ ټول قومونه له اموريانو او حتيانو ۲۰
او فرزيانو او حويانو او يبوسيانو چه له بني اسرائيل نه وُو
باقي وُو ۲۱ اولاد دَ هغو چه پس له هغو په زمکه کښې ۲۱
باقي وه چه بني اسرائيل نه توانيده چه ئې حرم کړې نو په هغو
سليمان دَ غلامئ خراج تر نن ورځې مقرّر کړ ۲۲ ليکن سليمان ۲۲
له بني اسرائيل څوک غلام نه کړ ځکه چه هغه سړې دَ جنګ او
خدمتګاران او اميران او ثالثان او سرداران دَ ګاډو او دَ سوارو
ئې وُو ۲۳ هغه چه په کار دَ سليمان سرداران وُو پنځه سوه ۲۳
پنځوس منصبداران وُو چه په حاکمانو دَ قوم حاکمان وُو
۲۴ او ليکن لُور دَ فرعون دَ داؤد له ښهره خپل کور ته ۲۴

ور وختله چه وله ئې بِنا کړې وه په دغه وقت ئې مَلو بِنا
٢٥ کړ ٢٥ او سليمان دري ځله په کال کښې دَ سيزلو او دَ سلامتيا
قربانئِ په هغه مذبح چه يهوه له ئې جوړه کړې وه وخيژولې
او دَ يهوه دَ وړاندِ ئې خوشبو وسيزلې او بيت ئې کامل کړ
٢٦ ٢٦ او سليمان بادشاه بيړئِ جوړې کړلې په عصيون جابر کښې
چه په طرف دَ ايلَة دَ بحر قلزم په بله غاړه.په زمکه دَ آدوم کښې
٢٧ وه ٢٧ او حيرام په بيړئِ کښې خپل غلامان ماړګان چه له بحره
٢٨ واقف وُو دَ سليمان له غلامانو سره وليږل ٢٨ نو اوفير ته لاړل
او له هلته ئې سره زر واخسته څلور سوه شل قنطار او سليمان
بادشاه ته ئې راوړل *

## لسم باب

١ ١ او چه مَلِکې دَ شَبا خبر دَ سليمان دَ يهوه دَ نوم واوريد
٢ دَ مسئلو دَ ازميښت دَپاره راغله ٢ نو اورشلم ته راغله له
ډيرِه لويه سورلِي له اوښانو چه په خوشبوئِ او په ډيرو زياتو
سرو زرو او په جواهرو سره بار وُو سليمان له راغله څه چه ئې
٣ په زړه کښې وُو ټول ئې وويل ٣ نو په ټولو خبرو هغه سليمان
خبر کړه له بادشاه نه يو کار پټ نه وه چه هغه ئې پرې خبر
٤ نه کړه ٤ او چه مَلِکې دَ شبا ټول حکمت دَ سليمان وليد او
٥ هغه بيت چه ئې بنا کړې وه ٥ او دسترخوان دَ خوراک ئې او دَ
غلامانو مجلس ئې او دَ خادمانو ودريدل ئې او پوشاک ئې او
ساقيان ئې دَ سيزلو قرباني ئې چه په بيت دَ يهوه کښې ئې خيژولې
٦ روح په کښې باقي پاتې نه شه ٦ نو بادشاه ته ئې وُوِ چه رښتيا
دَي هغه خبر چه ما په خپله زمکه کښې ستا دَ کارونو او ستا
٧ دَ حکمت اوريدلې وه ٧ ما په خبرو باور ونکړ ترڅو چه راغلم
او په خپلو سترګو مِ وليدل نو هغه چه مِ اوريدلي وُو نيم دُو

سنا حکمت او بنیکړه چه مِ اوریدلِي وُو په هغي زیات دي -
۸ ۸ مبارک دِي ستا سړِي او مبارک دِي ستا غلامان چه ستا
۹ په حضور ولاړ دِي او همیشه ستا حکمت اورِي ۹ لیکن مبارک
دِ وِي یهوه الله ستا چه درنه راضِي دَي او په تخت دَ اسرائیل
ئِ کښینولي ځکه چه یهوي له اسرائیلَ همیشه مینه وکړه چه ته
۱۰ ئِ بادشاه کړي چه عدل او صداقت وکړي ۱۰ او هغي بادشاه ته
یو سل شل قنطار سره زر او ډیري زیاتِ خوشبویِي او جواهر
وبخښل بیس له دي په دي شان ډیري خوشبویِئِ چه مَلِکي دَ
۱۱ شبا سلیمان بادشاه ته وبخښلي رانغلي ۱۱ او دا هسي دَ حیرام په
بیړو چه دَ اوفیر له سرو زرو ډکي وي له اوفیرَ راغلي په ډیرو
۱۲ زیاتو لرګو دَ چندنړو او په جواهرو ۱۲ او بادشاه دَچندنړوله لرګو
ستني دَ یهوي دَ بیت او دَ بادشاه دَ کور دَپاره جوړي کړي او بربطونه
او ربابونه دَ سرودیانو په دي شان دَ چندنړو لرګي تر نن ورځي پوري
۱۳ نه راغلل او نه ولیدلِي شول ۱۳ او سلیمان بادشاه دَ شبا مَلِکي
ته هر څه چه دَ هغي خواهش وه چه ئِ وغوښتل ور ئِ کړل
سِوا له دي سلیمان بادشاه دَ خپل سخاوت په موافق هغي ته
وبخښل نو هغه وګرزیده او له خپلو غلامانو خپلي زمکي ته
لاړله

۱۴ ۱۴ او وزن دُ سرو زرو چه سلیمان ته په یو کال کښِ
۱۵ راتله شپږ سوه شپږ شپیته قنطارونه دسرو زرو وه ۱۵ سوا له هغه
چه له تاجرانو اوله امد ورفت د سوداګرو او دَ ټولو بادشاهانو
له عربو او دَ زمکي له حاکمانو نه

۱۶ ۱۶ او سلیمان بادشاه دو سوه کنډلونه دَ سرو زرو ټکولي جوړ
۱۷ کړل او شپږ سوه (تولي) سره زر په یو کنډل ولګیدي ۱۷ او دري سوه
ډالونه ئِ له ټکولي سروزروجوړ کړل یو ډال دَ دریو اَمناءُ له سرو

زرو جوړ وه او سليمان هغه دَ لُبنان دَ ځنګل په کور کښ کيښودلي
۱۸ ۱۸ او بادشاه يو لوي تخت دَ هاتي دَ غابښونو جوړ کړ او په ښو سرو
۱۹ زرو ئي پټ کړ ۱۹ او دَ تخت شپږ زينې وي او دَ تخت له سره
تر شا پوري غونډ وه او دي خوا ته او هغه خوا ته په ځاي دَ
کيناستو دوه تکيه وي او دوه زمري دواړو تکيه ګانو ته څنګه ولاړ وُو
۲۰ ۲۰ او دولس زمري هلته په پوړو ولاړ وُو په دي خوا او په
هغي خوا په ټولو ملکونو کښ دَدي په شان نه وه جوړ شوي
۲۱ ۲۱ او ټول لوښي دَ څښلو دَ سليمان بادشاه دَ سرو زرو وو او ټول لوښي دَ لبنان
دَ ځنګل دَ کور له خالصو سرو زرو وُو نه دَ سپينو زرو دا دَ سليمان په زمانه کښ په
۲۲ هيڅ ګڼلي نه شول ۲۲ ځکه چه دَ بادشاه په بحر کښ بيړي دَ ترسيس سره
دَ بيړئ دَ حيرام نو بيړئ دَ ترسيس به راتله په دري کاله کښ
يو ځل به راتله بيړي دَ ترسيس ډکه دَ سرو او سپينو زرو او دَ
۲۳ هاتي دَ غابښونو او دَ بيزوګانو او دَ طاؤسانو به راتله ۲۳ نو سليمان
بادشاه لوي شه په ټولو بادشاهانو دَ زمکي په دولت او په حکمت
۲۴ کښ ۲۴ او ټولي زمکي آرزو دَ ليدلو دَ سليمان وکړه هغه
۲۵ حکمت چه الله دَ هغه په زړه کښ اچولي وه واؤري ۲۵ او
هر يو به له خپلي هديي دَ سپينو له لوښو او دَ سرو زرو له لوښو
او له پوشاکونو او له وسلي او له خوشبويو او له آسونو او له
۲۶ قچرو سره کال په کال راته ۲۶ او سليمان ګاډي او سواره جمع
کړل نو دَ هغه يو زر څلور سوه ګاډي وُو او دولس زره سواره
نو هغه ئي دَ ګاډو په ښهرونو کښ و درول او سره دَ
۲۷ بادشاه په اورشلم کښ ۲۷ او بادشاه په اورشلم کښ
سپين زر په شان دَ کاڼړو کړل او لمنځي ئي په شان
۲۸ دَ اينځرو کړلي چه په کوز ميدان کښي په کثرت سره وي ۲۸ او وتنه
دَ آسونو دَ سليمان له مصر وه او ټولي دَ تاجرانو دَ بادشاه

۲۹ به پرک پرک په بيعه اخستل ۲۹ يو گاډي به خوت او له مصر به
وته په شپږ سوه دَ سپينو زرو او يو آس په يو سل پنځوس او
په دي شان سره دَ حتّيانو دَ ټولو بادشاهانو او دَ آرامي دَ
بادشاهانو دَپاره به دَ هغو اه لاسونو سره وتل *

# يولسم باب

۱ آ او سليمان بادشاه ډيري پردئ ښځي محبّتي کړلي او دَ فرعون
له لور سره موابياني او عمونياني او ادوميانى او صيدونياني او
۲ حتّياني ۲ له هغو قومونو چه خداوند دَ هغو په باب بني اسرائيل
ته وويل چه تاسي هغوي ته مه ورننه وزئ او نه دِ هغوي تاسو
ته درننه وزي ځکه چه هغوي به ستاسو زړونه دَ خپلو خدايانو
۳ په لور واړوي نو سليمان دَ دغو په مينه کښ ونښت ۳ او
دَده اوه سوه بيبياني ښځي وي او دري سوه سُريتي نو دَده
۴ ښځو دَده زړه واړاوه ۴ او دَ سليمان دَ زوړتوب په وقت کښ
داسي وشوه چه دَده ښځو دَده زړه په نورو خدايانو پسي
واړوه او دَده زړه له خداوند الله خپل سره سالم نه وه لکه
۵ زړه دَده دَ پلار داؤد ۵ نو سليمان په عَشتُورَت خداي دَ
صيدونيانو پسي او په ملکوم مکروه دَ عمونيانو پسي شه
۶ ۶ او سليمان دَ خداوند په سترګو کښ بدي وکړه او نه په ډکوالي
۷ سره په خداوند پسي شه لکه دَده پلار داؤد ۷ هغه وقت
سليمان دَ موابيانو دَ مکروه کموش دَپاره لوړ ځاي بنا کړ په
هغه غره چه اورشليم ته مخامخ دي او مولک مکروه دَ بني عمون
۸ ۸ او هم هسي دَ هغو ټولو پردو ښځو دَپاره چه خپل خدايانو
ته به ئي بخور سيزل او ذبحي ئي کولي
۹ ۹ نو خداوند په سليمان باندِ خپه شه ځکه چه دَده زړه

له خداوند الله دَ اسرائيلَ چه دوه واره ورته ښکاره شـه
۱۰ اړولي وه ۱۰ او په دي خبرهِ کښي يُ ده ته حکم وکړ چه دي دِ
په نورو خدايانو پسي تلل نه کوي او ده هغه چه خداوند
۱۱ ورته حکم وکړ ونه ساته ۱۱ نو خداوند سليمان ته ووېل دي
دَپاره چه دغه تا څخه کيږي او څما عهد او څما حقونه چه ما
حکم پرِ درکړ و نه ساتل نو زه به له تا نه بادشاهي په څيرولو
۱۲ څيري کړم او ستا نوکر ته به يُ ورکړم ۱۲ مګر زه به دا ستا په
ورځو کښي دَ داؤد ستا دَ پلار دَپاره و نه کړم بلکه ستا دَ څوي
۱۳ له لاس به يُ څيري کړم ۱۳ تش ستا دَ څوي له لاسَ به ټوله
بادشاهي څيري نه کړم بلکه يوه فرقه به ستا څوي لرِه څما
دَ بنده داؤد په خاطر او دَ اورشليم دَپاره چه ما غوره کړي
دي ورکړم
۱۴ ۱۴ نو خداوند هدد ادومي دُشمن سليمان ته پورته کړ
۱۵ چه هغه دَ بادشاه له اولاده په ادوم کښي وه ۱۵ او داسي
وشوه هرکله چه داؤد په ادوم کښي وه او دَ لښکر سـردار
يوآب دَ هغو وژليو دَ ښخولو دَپاره وخوت او ده په ادوم کښي
۱۶ ټول ميړونه ووهل ۱۶ نو يوآب او ټول اسرائيل هلته کښي شپږ
مياشتي اوسيدل څو چه يُ په ادوم کښي ټول ميړونه پرېکړل
۱۷ ۱۷ نو هدد وتښتيده دي او څو ادوميان کسان دَده دَ پلار
له مريونو ورسره چه مصر ته ورشي او هدد وړوکي هلک وه
۱۸ ۱۸ او له مديانه پورته شول او پاران ته راغلل او له پاران يُ
کسان واخستل او مصر ته فرعون بادشاه دَ مصر ته راغلل
نو هغه يو کور ورکړ او خوراک يُ ورته مقرّر کړ او زمکه
۱۹ يُ ورکړه ۱۹ نو هدد دَ فرعون په سترګو کښي ډير نعمت وموند
او هغه دَ خپلي ښځي خور دَ تحفنيس ملکي خور ور واده کړه

٢٠ نو دَ تحفنیس خور ده لره جنوبث زوي دَ ده وزیږاوه او تحفنیس ٢٠
دَ فرعون دَ کور په مینځ کښې هغه له رِتي پرېکړِ او جنوبث دَ
فرعون په کور کښې دَ فرعون دَ زامنو په مینځ کښې وه ٢١ او ٢١
چه هدد په مصر کښې واورېدل چه داؤد له خپلو پلرونو
سره څملاست او چه یوآب سردار دَ لښکر مړ شه نو هدد
فرعون ته ووېل چه رخصت مِ کړه چه خپلي زمکي ته لاړ شم
٢٢ نو فرعون ورته ووېل چه ما څخه دَ کوم څیز محتاج يې چه ٢٢
ګوره ته خپلي زمکي ته تلل غواړي هغه ووېل دَ هیڅ نه مګر
رخصت مِ کړه

٢٣ او الله ده لره بل دُشمن رزون زوي دَ الیداع پورته ٢٣
کړِ هغه چه له خپل خاونده هددعزر بادشاه دَ ضوبه نه
وتښتېده ٢٤ نو ده څان لره کسان جمع کړل او دَ یوي ډلي ٢٤
سردار شه هغه وقت چه داؤد دوي ووژلل او هغوي دَمشق
ته لاړل او هلته اوسېدل او په دمشق کښې يې بادشاهي کوله
٢٥ او هغه ټولي ورځي دَ سلیمان دَ اسرائیل دُشمن وه او هم ٢٥
هغه بدي چه هدد وکړه او هغه له اسرائیل نه نفرت کاوه
او په آرام يې بادشاهي وکړه ¶ ٢٦ او یربعام بن نباط افرائیمي دَ صرده ٢٦
مریي دَ سلیمان او نوم دَ مور يې صروعه کُنده ښځه وه خپل
لاس يې په بادشاه پورته کړل ٢٧ او داسي خبره وه چه ده لاس ٢٧
په بادشاه پورته کړه سلیمان مِلّوا بناکړِ او دَ خپل پلار داؤد
دَ ښهر سوري يې بندول ٢٨ او هغه سړي یربعام جبّار دَ قوّت ٢٨
وه نو چه سلیمان هغه هلک ولید چه چوست دي نو هغه
يې په ټول کار دَ بیت دَ یوسف ودراوه ٢٩ او په دغه وقت ٢٩
کښې داسي وشوه چه یربعام له اورشلیمه ووت نو اخیا هغه
شلوني نبي يې په لار کښې وموند او ده نوي څادر په څان اچولي

٣٠ وه او دوي دواړه يواځي په پټيي كښ وُو ٣٠ نو اخيا هغه نوي
څادر چه په ده باندِ وه په ټابو كړ او دوه لس ټكړي ئي څيري
٣١ كړي ٣١ او يربعام ته ئي وويل چه واخله دَ ځان دَپاره لس ټكړي
ځكه چه خداوند الله دَ اسرائيل داسي وائي گوره زه به هغه
مملكت دَ سليمان له لاسه څيري كړم او لس فرقي به تا ته دركړم
٣٢ ٣٢ او هغه لره به يوه فرقه څما دَ بنده داؤد دَپاره وِي او دَ
اورشليم دَپاره هغه ښهر چه ما له ټولو فرقو دَ اسرائيل غوره
٣٣ كړ ٣٣ ځكه چه زه ئي پريښودلي يم او دَ صيدونيانو خدايانی
عشتورث ته ئي سجده كړي دَه او كموش الله دَ موابيانو
ته او ملكوم الله دَ بني عمون ته او څما په لارو كښ لا نه رلِ
چه څما په ستركو كښ هغه چه راست دِي وكړي او چه
څما حقونه او څما عدالتونه وكړي لكه چه داؤد پلار دَده -
٣٤ ٣٤ او زه به ټول مملكت دَده له لاسه وانه خلم بلكه دَده
ټولي ورځي به ئي شازاده كيږدم څما دَ بنده داؤد دَپاره هغه
چه ما غوره كړ هغه چه څما فرضونه او حكمونه ئي وساتل-
٣٥ ٣٥ او زه به بادشاهي دَده دَ زوي له لاسه واخلم او هغه
٣٦ به تا ته دركړم يعني لس فرقي ٣٦ او دَ هغه زوي ته به يوه
فرقه وركړم چه څما بنده داؤد لره چراغ وِي ټولي ورځي څما
د وړاندِ په اورشليم كښ هغه ښهر چه ما دَ خپل ځان
٣٧ دَپاره غوره كړ چه خپل نوم هلته كيږدم ٣٧ او تا به واخلم
او ته به دَ خپل ځان دَ خواهش په موافق په ټولو بادشاهي
٣٨ وكړي او ته به اسرائيل كښ بادشاه شي ٣٨ او داسي به وشِي
چه ته هر هغه څه چه زه ئي درته وفرمايم واوري او څما
په لارو كښ لاړ شي او ته هغه وكړي چه څما په ستركو كښ
راست وِي او ته څما حقونه او فرضونه وساتي لكه چه څما

بنده داؤد وکړل نو زه به له تا سره يم او ستا دَپاره به يو
امانت کور بنا کړم لکه چه ما داؤد لره بنا کړ او تا ته به
۳۹ اسرائيل درکړم ۳۹ او دَ داؤد اولاد به دَ دي دَپاره ذليل کړم
۴۰ ليکن نه تولي ورځي ۴۰ او سليمان يربعام طلب کړ چه مړ ئي کړي
نو يربعام پورته شه او مصر ته وتښتيده شيشق بادشاه دَ
مصر ته او په مصر کښ دَ سليمان تر مرګ پوري وه
۴۱ ۴۱ او دَ سليمان نوري خبري او هر څه چه ده وکړل او
دَده حکمت هغه دَ سليمان دَ خبرو په کتاب کښ ليکلي شوي
۴۲ نه دي څه؟ ۴۲ او هغه ورځي چه په کښ سليمان په اورشليم
کښ په تول اسرائيل بادشاهي کوله څلويښت کاله وُو ۴۳ او سليمان
له خپلو پلارونو سره څملاست او دَ داؤد پلار دَده په ښهر کښ
ښخ کړي شه او رحبعام دَده زوي دَده په ځاي بادشاه شه +

# دولسم باب

۱ ۱ او رحبعام شکيم ته لاړ ځکه چه تول اسرائيل په شکيم کښ
۲ جمع شوي وُو چه بادشاه ئي کړي ۲ او داسي وشوه چه يربعام
ابن نباط واوريدل او دَي لا تر اوسه په مصر کښ وه ځکه
چه دَي دَ سليمان بادشاه له مخه تښتيدلي وه او يربعام
۳ په مصر کښ اوسيده ۳ او هغو ور واستول او دَي ئي راوباله
نو يربعام راغي او تول جماعت دَ اسرائيل او رحبعام ته ئي
۴ خبري وکړي و ئي ويل چه ۴ ستا پلار څموږ ژغ دروند کړ او
اوس ته هغه خدمت ستا دَ پلار او هغه دروند ژغ چه په
موږ باندِ ئي کيښود سپک کړه نو موږ به ستا خدمت کوُو
۵ ۵ او ده هغو ته وويل چه تر دريو ورځو لاړ شئ بيا ماته راشئ
۶ نو امّت لاړ ۶ او هغه بادشاه رحبعام له هغو سپين ږيرو سره

چه دَ سلیمان دَ ده دَ پلار دَ وړاندِ (چه هغه ژوندي وه) به
ودریدل مصلحت وغوښت و ئې ویل چه تاسي څرنګ مصلحت
۷ راکوئ چه زه هغو خلقو ته څه ځواب ورکړم؟ او هغو ده ته
خبره وکړه و ئې ویل چه که ته نن ورځ دَ دي اُمّت مریي شي
او خدمت ئې وکړي او بخښنه وکړي او خبري ورسره وکړي
۸ بښي خبري نو دوي به تل ورځي ستا مریونه وِي ۞ او ده دَ
سپین ږیریو مصلحت چه ور ئې کړ پریښوه او له هغو ځوانانو
چه له ده سره لوي شوي وو او دَ ده دَ وړاندِ به ودریدل
۹ مصلحت وغوښت ۞ او ده هغوي ته وویل چه تاسو څه مصلحت
راکوئ چه زه دي اُمّت ته خبره وکړزوم چه ما ته ئې خبره وکړه
وایي چه هغه ژغ چه ستا پلار په مونږ کیښود سپک کړه
۱۰ ۞ نو هغه ځوانانو چه له ده سره لوي شوي وُو خبره وکړه
و ئې ویل چه ته دغه اُمّت ته چه تا ته ئې خبره وکړه وایي چه
ستا پلار په مونږ باندِ دروند ژغ کیښود او ته ئې سپک کړه
داسي ورته دوایي څما نیچیني ګوته څما له پلار له ملا نه به زیاته غټه
۱۱ وِي ۞ او اوس چه څما پلار په تاسي باندِ دروند ژغ کیښلي
دي نو زه به ستاسي ژغ زیات کړم پلار م په کروړو تنبیه
درکولي او زه به په لړمانو تنبیه درکړم
۱۲ ۞ نو یربعام او ټول اُمّت رحبعام ته په دریمي ورځي
ورغي لکه چه بادشاه خبره وکړه ویل ئې چه په دریمه ورځ
۱۳ ما ته را وګرزئ ۞ نو بادشاه اُمّت ته سخت ځواب ورکړ او
۱۴ دَ سپین ږیریو مصلحت چه په صلح ئې ورکړي وه پریښود ۞ او
دَ ځوانانو دَ مصلحت په موافق ئې خبره وکړه و ئې ویل چه
څما پلار په تاسي باندِ ژغ دروند کړ او زه به ستاسي په ژغ
زیات کړم پلار م په کروړو تنبیه درکړه او زه به په لړمانو

۱۵ تنبیه درکړم ۱۵ او بادشاه دَ اُمّت وانه وریدل ځکه چه دا
سبب دَ خداوند له طرفَ وه تا چه هغه کلام خپل قایم کړي
چه خداوند دَ اخیاه شلونِي په لاس یربعام بن نباط ته وکړ
۱۶ ۱۶ نو چه ټول اسرائیل ولید چه بادشاه دَ دوي وانه وریدل
نو اُمّت بادشاه ته ځواب ور وکړزاوه وئِ ویل چه ځمونږ په
داؤد کښ کومه برخه ده او په ابنِ یسي کښ میراث نشته
خپلو خیمو ته اي اسرائیل: اوس خپل کور ته نظر وکړه اي
۱۷ داؤده او اسرائیل خپلو خیمو ته لاړ ۱۷ او هغه بنِي اسرائیل
چه دَ یهود په ښهرونو اوسیدل رحبعام پرِ بادشاهي کوله
۱۸ ۱۸ بیا رحبعام بادشاه ادورام چه په بیګار وه واستاوه او
هغه ټول اسرائیل په کاڼړو سنګسار کړ او هغه مړ شه
نو رحبعام بادشاه تلوار وکړه کاډِي ته وختو چه اورشلیم ته
۱۹ وتښتي ۱۹ نو اسرائیل ترنن ورځي پوري دَ داؤد له کورونه یاغي
۲۰ دي ۲۰ او چه ټول اسرائیل واوریدل چه یربعام وکرزیده نوئِ
واستول او هغه ئِ جماعت ته وباله او په ټول اسرائیل ئِ
بادشاه کړ هیڅوک دَ داؤد په کور پسي بي له فرقي دَ یهوداه نه وه
۲۱ ۲۱ او چه رحبعام اورشلیم ته ورغي او ټول کور دَ یهوداه
او فرقه دَ بنیامین ئِ جمع کړه یو سل اتیا زره بهادران جنګیالي
چه دَ اسرائیل دَ کور سره وجنګیږي او بادشاهي رحبعام بن
۲۲ سلیمان ته وګرزوي ۲۲ او کلام دَ الله شمعیاه مرد دَ الله ته
۲۳ راغي وئِ ویل ۲۳ چه ته رحبعام بنِ سلیمان بادشاه دَ یهوداه
او ټول کور دَ یهوداه او بنیامین او باقي
۲۴ اُمّت ته امر وکړه ووایه ۲۴ چه خداوند داسي امر کوي چه
تاسي ونه خیژئِ او نه له خپلو وروڼړو بنِي اسرائیل سره
وجنګیږئِ هر سړئِ خپل کور ته وګرزئِ ځکه چه دا کلام

ځما له طرفه دئ او هغوي كلام دَ خداوند واوريده اوله تللو نه
۲۵ وګرزيدل دَ خداوند دَ كلام په موافق ۲۵ او يربعام شكيم دَ
افرايم په كوهستان كښې بنا كړ او په كښې اوسيده او له
۲۶ هغه ځاىَ ووت او فنوئيل ئې بنا كړ ۲۶ او يربعام په خپل زړه
كښې ووېل چه اوس به مملكت دَ داؤد وګورته وګرزي -
۲۷ ۲۷ كه دا اُمت وخېژي چه په بيت دَ يهوه چه په اورشليم
كښې دي ذبحې وګزاري نو دَدي اُمّت زړه به دَ دوي خاوند
رحبعام بادشاه دَ يهوداه ته وګرزي او ما به قتل كړي
۲۸ او دوي به رحبعام بادشاه دَ يهوداه ته وګرزي ۲۸ او بادشاه
مصلحت وغوښت او دوه سخي ئې دَ سرو زرو جوړ كړل
او هغو ته ئې ووېل چه تاسي ته ډېره ده چه اورشليم ته وخېژئ
ګورئ خپل اِلٰهان اي اسرائيلَ چه تاسي ئې دَ مصر له زمكې را
۲۹ وخېژولئ ۲۹ او يو ئې په بيت ايل كښې ولګاوه او بل ئې په
۳۰ دان كښې كېښود ۳۰ او دا خبره خطا شوه او اُمّت به دَ يوه
۳۱ دَ وړاندِ تر دان پوري ورته ۳۱ او دَ لوړو كور ئې جوړ كړ او دَ
اُمّت له اطرافو ئې كوهينان مقرّر كړل چه له بني لاوِي نه نه وُو
۳۲ ۳۲ او يربعام په اتمې مياشتې عيد جوړ كړ په پنځلسمې ورځې
دَ مياشتې لكه هغه عيد چه په يهوداه كښې وه او په
مذبح ئې وخېژاوه همسې ئې په بيت ايل كښې وكړل په ذبحې كولو
سره هغو سخيو ته چه ده جوړ كړل او په بيت ايل كښې ئې كوهينان دَ
۳۳ هغو لوړو چه جوړ ئې كړلي ودرول ۳۳ او په هغه مذبح باندِ
ئې وخېژول چه ده په بيت ايل كښې جوړه كړه په پنځلسمې ورځې
كښې په هغې اتمې مياشتې كښې په هغې مياشتې كښې چه له
خپل زړه نه ئې خيال كړ نو بني اسرائيل له ئې عيد جوړ كړ او په
مذبح ئې وخېژاوه چه بخور وسېزي *

# دیارلسم باب

آ او گوره چه یو مردِ الله له یهوداه نه دَ خداوند په کلام ۱
سره بیتِ‌ایل ته راغي او یربعام مذبح څنګه ولاړ وه چه بخور
وسیزي ۲ نو دَ مذبح په لوري دَ خداوند په کلام سره ئې ناره ۲
وکړه او و ئې ویل ای مذبحَ اي مذبحَ خداوند داسي امر کوي
گوره یو زوي به و زیږیدلي شي نوم دَ هغه به یوشیّا وي او
هغه به په تا باندِ دَ لوړو دَ کوهینانو ذبح وکړي هغوي چه په
تا باندِ بخور سیزي او په تا باندِ به دَ آدمزاد هډوکي وسیزلي
شي ۳ او هغه به په دغي ورځي یو عجائب وکړي و ئې ویل چه دا ۳
هغه عجائب دي چه خداوند پرِخبره وکړه گوره مذبح به وچوي
او هغه ایري چه ورباندِ دي توي به شي ۴ او داسي وشول چه ۴
بادشاه کلام دَ مردِ الله واوریده هغه چه دَ مذبح په لوري په
بیتِ‌ایل کښ ئې نعره وکړه نو یربعام خپل لاس له مذبح نه اوږد
کړ و ئې ویل و ئې نسئ او دَ هغه لاس چه دَ هغه په لوري ئې
اوږد کړ وچ شه او دي نه ټوانیده چه ځان ته ئې را وگرزوي -
۵ او مذبح وچاؤده او ایري له مذبحَ توي شوي موافق دَ هغه ۵
عجائب چه مردِ الله دَ خداوند دَ کلام په موافق وویل ۶ او بادشاه ۶
ځواب وکړ او مردِ الله ته ئې وویل چه ته دَ خداوند دَ خپل الله
په مخ کښ زاري وکړه او ځما دَپاره دُعا وکړه او ځما لاس به ما ته
را وگرزیدلي شي او مردِ الله دَ خداوند مخ ته زاري وکړه او دَ
بادشاه لاس ور وگرزیده او داسي شه لکه اول ۷ او بادشاه ۷
مردِ الله ته وویل چه له ما سره کور ته راشه او ځان تازه کړه
او زه به تا ته اُجرت درکړم ۸ او هغه مردِ الله بادشاه ته وویل ۸
چه که ته ما ته خپل نیم کور راکړي درسره به نه نه وزم او نه

۹ به ډوډئ وخورم او نه به په دي ځاي کښ اوبه وڅښم ۹ ځکه
چه ماته دَ خداوند په کلام سره فرمايلي وه ويل ئې چه ته مه
ډوډئ خوره او مه اوبه څښه او مه په هغي لاري کښ ګرزه
۱۰ چه ته په کښ ځي ۱۰ نو هغه په بلي لار لاړ او نه ګرزيده په
۱۱ هغي لاري چه په کښ بيت‌ايل ته ورغي ۱۱ او په بيت‌ايل کښ
يو زوړ نبي اوسيده نو زامن ئې راغلل او هغه ټول کار چه هغه
ورځ مردِ الله په بيت‌ايل کښ وکړ ورته ئې بيان کړ او هغه
خبري چه بادشاه ته ئې کلام وکړ خپل پلار ته ئې بيان کړ-
۱۲ ۱۲ نو هغو ته دَ دوي پلار وويل چه په کومي لاري لاړ او دَ هغه
زامنو ليدلي وه هغه لار چه مردِ الله چه له يهوداه راغلي وه
۱۳ پرِ لاړ ۱۳ او هغه خپلو زامنو ته وويل چه ماته په خره زين وتړئ
۱۴ او هغوي په خره بانديِ زين وتاړه او دي پرِ سور شه ۱۴ او په
مردِ الله پسي لاړ او هغه ئې ومونده چه تر بلوط دَ لاندِ ناست
وه او ورته ئې وويل چه ته هغه مردِ الله يي چه له يهوداه راغلي
۱۵ يي او ده وويل زه (هغه يم) ۱۵ نو ده هغه ته وويل چه ته
۱۶ له ما سره کور ته لاړ شه او ډوډئِ وخوره ۱۶ او هغه وويل
چه زه نه توانيږم چه له تا سره وګرزم او نه به درسره ننه وزم
او نه به ډوډئِ وخورم او نه به درسره اوبه وڅښم په دي ځاي
۱۷ کښ ۱۷ ځکه چه ماته په کلام دَ خداوند سره ويلي شوي وه
چه ته مه ډوډي خوره او نه هلته کښ اوبه څښه او نه په
۱۸ هغه لاري کښ چه په کښ لاړي وګرزه ۱۸ نو ده هغه ته وويل
چه زه هم ستا په شان نبي يم او ماته فرښتي دَ خداوند
په کلام خبره وکړه ويل ئې چه هغه درسره خپل کورته وګرزوه
او هغه به ډوډئِ وخوري او اوبه به وڅښي مګر ده هغه ته
۱۹ دروغ وويل ۱۹ او هغه ورسره وګرزيده او دَ هغه په کور کښ

يُ ډوډيِ وخوړه او اوبه يُ وڅښلې ٢٠ او چه دوي لا په ٢٠
خوانځي ناست وُو نو دَ خداوند كلام هغه نبِي ته چه دي يُ
وګرزاوه وشه ٢١ نو هغه مردِ الله ته چه له يهوداه راغلي ٢١
وه نعره وكړه ويل يُ چه خداوند داسي امر كوِي دي دَپاره
چه دَ خداوند له خولي سركښ شوي او هغه فرمان چه
خداوند الله ستا تاته وفرمايه ودِ نه ساته ٢٢ او وګرزيدي ٢٢
او ډوډي دِ وخوړه او اوبه دِ وڅښلي په هغه ځاي كښ چه
تاته يُ وويل چه ته مه ډوډيُ خوره او مه اوبه څښه ستا
لاش به ستا دَ پلاروڼو په قبر كښ ننه نه وزِي ٢٣ او پس له ٢٣
هغه چه ډوډيِ يُ وخوړه اوبه يُ وڅښلي هغه ته يُ په خره
زين وتاړه دَ هغه نبِي دَپاره چه هغه يُ وګرزاوه ٢٤ او هغه ٢٤
روان شه يو زمري په لاري كښ هغه وموند او هغه يُ
مړ كړ او دَ هغه لاش په لار كښ اچولي شوي وه او
هغه خر دِ هغه په څنګ كښ ولاړ وه او زمري دَ هغي
لاش په څنګ كښ ولاړ وه ٢٥ او ګوره چه كسان تيريدونكي ٢٥
وُو او هغو هغه اچولي شوي لاش په لار كښ وليد او
زمري دَ لاش په څنګ كښ ولاړ او هغوي راغلل او په
هغه ښهر كښ چه هغه سپين ږيري نبِي په كښ اوسيده
خبر يُ وكړ ٢٦ او چه هغه نبِي چه هغه يُ له لاري راوګرزولي ٢٦
وه واوريدل و يُ ويل چه دا هغه مردِ الله دي چه
دَ خداوند له خولي سركښ شه نو خداوند هغه زمرِي ته
وركړ او هغه يُ مات كړ او مړ يُ كړ په موافق دَ كلام
دَ خداوند چه ده ته يُ كلام وكړ ٢٧ او ده خپلو ځامنو ته ٢٧
خبره وكړه و يُ ويل چه ما له په خره زين وتړيِ او هغو
زين وتاړه ٢٨ او دي لاړ او دَ هغه لاش يُ په لار كښ اچولي ٢٨

شوي و موند اوخر او زمري لاش ته څخه ولاړ او هغه زمري
۲۹ هغه لاش خوړلي نه وه او نه ئې خر مات کړ ۲۹ نو هغه
نبي دَ مردِ الله لاش پورته کړ او په خره ئې کيښود او وئې
ګرزاوه او هغه زوړ نبي ښهر ته ننه وت چه ترې پرِ ووهي او
۳۰ ښخ ئې کړي ۳۰ خو دَ هغه لاش ئې په خپل قبر کښ کيښود او
۳۱ ترې ئې پرِ واهه و ئې ويل هاي اي څما وروره ۳۱ او پس له
ښخولو دَ هغه خپلو ځامنو ته ئې وويل چه زه مړ شم نو په
هغه قبر کښ چه په کښ هغه مردِ الله ښخ دَي ښخ م کړئ
۳۲ څما هډوکي دَ هغه دُ هډوکيو په څنګ کښ کيږدئِ ۳۲ دي دپاره
چه هغه کلام چه ده دَ خداوند په کلام سره دَ مذبح په
خلاف چه په بيتِ ايل کښ دَي او دَ هغه ټولو کورونو دَ لوړو
په خلاف چه دَ سمرون په ښهرونو کښ دِي ويلَي دَي په کيدلو
۳۳ کښ به وشِي ¶ ۳۳ او پس له دي خبري يربعام له خپلي بدي
لاري ونه جاروت بلکه دی وګرزيده او دَ اُمّت له اطرافو ئې
دَ لوړو کوهينان مقرّر کړل څوک چه ئې وغوښت دَ هغه لاس
۳۴ ئې خاص کړ او هغه دَ لوړو له کوهينانو شه ۳۴ او له دي
خبري دَ يربعام کور لره خطا وه او دَ هغه دَ کولو او برباد کولو
دَ زمکي له مخ نه *

## څوارلسم باب

۱ په دغه وقت کښ ابيّاَ زوي دَ يربعام رنځور شه ۲ او يربعام
خپلي ښځي ته وويل چه پورته شه که نه خپل شکل بدل کړه
تاچه پوهيدلي نه شِي چه ته دَ يربعام ښځه يي او شيلوه ته
لاړه شه ګوره هلته کښ اخيّاَ نبي دَي چه په ما ئې کلام
۳ وکړ دَ بادشاه کيدلو په دي اُمّت بانْدِ ۳ او په خپل لاس کښ
لس ډوډئِ او ټيکلئ او دَ ګبينه کوزه واخله او هغه ته

ورشه او هغه به درته څرګند کړي چه هلک به څه شي ۴ نو ۴
دَ يربعام ښځي داسي وکړل او پورته شوه او شيلوه ته لاړه او
دَ اخيا کورته راغله او اخيا ليدلي نه شول ځکه چه دَ زوړوالي
په سبب دَده سترګي ودريدلي وي ۵ او خداوند اخيا ته وويل ۵
ګوره چه دَ يربعام ښځه راغله تاچه له تا نه دَ خپل زوي په
باب خبره پوښتنه وکړي ځکه چه هغه رنځور دَي نو ته هغه ته
لکه داسي او داسي ووايه او داسي به وِي که هغه دننه دَرِشي
نو هغه به ځان پردي کړي ۶ نو داسي وشوه چه اخيا دَ هغي ۶
دَ پښو آواز واوريده چه هغه دننه راغله نو ده هغي ته
وويل چه اي دَ يربعام ښځي راننه وزه ته دا ولي ځان پردي
کوي او زه تاته استولَی شوي يم په سخته خبره سره ۷ لاړه شه ۷
يربعام ته ووايه چه خداوند الله دَ اسرائيل داسي امر کړي
دي دَپاره چه ما ته دَ اُمّت له مينځه پورته کړي او په خپل
امّت اسرائيل باندِ مِ امير مقرّر کړي ۸ او دَ داؤد له کوره مِ ۸
مملکت وشلاوه او هغه مِ تاته درکړ او ته لکه ځما بنده داؤد
هسي نه وي هغه چه ځما فرمانونه ئې وساتل او هغه چه په
ما پسي په خپل ټول زړه لاړ شه تش هغه ئې وکړل چه ځما
په سترګو کښ راست دِي ۹ ليکن تا په کولو بدِي کړي ده له ۹
ټولو نه چه له تانه وړاندي وُو او ته لاړي او دَ ځان دَپاره
دِ نور خدايان او ويلي شوِي جوړ کړِي دِي چه و مِ قهروي او
زه دِ دَ خپلي شا دَ ورستو اچولي يم ۱۰ دي دَپاره ګوره زه به دَ ۱۰
يربعام په کور بدي بلا راوړم چه له يربعام به ورو کي نر هلک
او بندوال او ارت وال به اسرائيل کښ پري کړم او دَ يربعام
دَ کور آخر به نيستِي کړم لکه چه څوک سره نيستِي کوي ترڅو
پوري چه تمام شِي ۱۱ هغه چه دَ يربعام په ښهر کښ مړ شِي ۱۱

سپي به ئې وخوري او هغه چه په پټي کښې مړ شي دَ آسمان
۱۲ مرغان به ئې وخوري ځکه چه خداوند کلام کړي دي ۱۲ او ته
پورته شه خپل کور ته ورځه او چه ستا پښي ښهر ته ور
۱۳ ننه وزي نو هغه هلک به مړ شي ۱۳ او ټول اسرائيل به پرِ
تيتر ووهي او ښخ به ئې کړي ځکه چه دغه يواځي به له يربعام
قبر ته ننه وزي ځکه چه په دغه کښې يوه خبره ومندلې شوه
چه دَ خداوند الله دَ اسرائيل په نزد دَ يربعام په کور کښې
۱۴ نيکه دَه ۱۴ او خداوند به دَ ځان دَپاره په اسرائيل بادشاه
۱۵ ودروي چه دَ يربعام کور به پرې کړي نن ورځ او هم دا ساعت ۱۵ او
خداوند به اسرائيل داسي ووهي لکه کاني په اوبو کښې ښيبيږي
او اسرائيل به له دي ښې خاوري چه ده دَ هغو پلارونو ته
ورکړه وکاږي او دَ درياب تر پوري خوا به ئې تار په تار کړي
۱۶ ځکه چه دوی آشريم جوړ کړل خداوند قهر کونکي شه ۱۶ او
اسرائيل به دَ يربعام دَ خطاؤ په حال کښې چه ده خطا وکړه
۱۷ او په اسرائيل ئې هم خطا وکړه دفعه به ئې کړي ۱۷ نو دَ يربعام
ښځه پورته شوه او لاړه او ترځه ته راغله او چه دَ دروازي
۱۸ آستانې ته راغله هغه هلک مړ شه ۱۸ نو هغه ئې ښخ کړ او ټول
اسرائيل پرِ تيتر ووهه موافق دَ هغه کلام دَ خداوند چه دَ
۱۹ خپل بنده اخيّا نبي په لاس ئې کلام وکړ ۱۹ او پاتي خبري
دَ يربعام چه دي څرنګ وجنګيده او څرنګ ئې بادشاهي کوله
کوره دوي دَ اسرائيل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښې
۲۰ ليکلي شوي دِي ۲۰ او ورځي چه په کښې يربعام بادشاهي وکړه
دوويشت کاله وي او له خپلو پلارونو سره څملاست او دَ ده
زوی ناداب دَ ده په ځاي بادشاهي وکړه
۲۱ ۲۱ او رحبعام بن سليمان په يهوداه کښې بادشاهي وکړه

او رحبعام دَ یو څلویښت کالو وه دَ ده په بادشاه کیدلو کښې
او اولس کاله ئې په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه هغه ښهر
چه خداوند له ټولو فرقو له اسرائیلَ غوره کړ چه خپل نوم
۲۲ په هغه کیږدِي او دَ ده دَ مور نوم نعمه هغه عمونیه وه ۲۲ او
یهوداه دَ خداوند په سترګو کښې شرارت وکړ او هغه ئې
غیرت ته ولمځوه زیات له هغو ټولو چه دَدوي پلارونو خطا
۲۳ وکړله هغه چه دوي خطا پرِ وکړه ۲۳ او دوي دَ خپلو ځانونو
دَپاره لوړي او ستني او اشریم په هر لوړ غره باندِ بنا کړل او
۲۴ تر هري شني ونې لاندِ ۲۴ او په زمکه کښې کونیان هم وُو
چه موافق دَ ټولو پلیتو دَ غیر قومونو ئې وکړل هغوِي چه خداوند
۲۵ دَ بني‌اسرائیل له وړاندِ لا وارث وشړل ۲۵ او په پنځم کال دَ
رحبعام بادشاه کښې داسي وشوه چه شیشق بادشاه دَ مصر
۲۶ اورشلیم ته وخوت ۲۶ او دَ بیتِ یهوه خزاني او دَ بادشاه دَ
کور خزاني ئې واخستي او هغه ټول ئې واخستل او هغه ټول
۲۷ ډالونه دَ سرو زرو چه سلیمان جوړ کړل وا ني‌خستل ۲۷ نو
رحبعام بادشاه دَ هغو په بدل کښې دَ زیړو ډالونه جوړ کړل
او هغه ئې زغلیدونکو سردارانو ته چه دَ بادشاه دَ کور دَ
۲۸ دروازي ساتونکي وُو وسپارل ۲۸ او داسي وشول څوځله چه
بادشاه به بیت یهوه ته ننه‌وت نو زغلیدونکي به هغوي
۲۹ یو وړل او بیا به ئې دَ زغلیدونکو وثقه‌خاني ته وګرزول ۲۹ او
باقي خبري دَ رحبعام او هر هغه څه چه ده وکړه دَ یهوداه دَ
بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښې لیکلي شوي نه دي څه؟
۳۰ ۳۰ او دَ رحبعام او دَ یربعام په مینځ کښې ټولي ورځي جنګ وه
۳۱ ۳۱ بیا رحبعام له خپلو پلرونو سره څملاست
او دَ خپلو پلرونو سره دَ داؤد په ښهر کښې ښخ کړي

شه او دَده دَ مور نوم نعمَه هغه عمونيه وه او ابيام دَده
زوي دَده په ځاي بادشاهِي وکړه ❖

# پنځلسم باب

۱ آ او دَ يربعام بن نباط دَ بادشاهِئ په اتلسم كال ابيام په يهوداه
۲ بادشاهِي وکړه ۲ په اورشليم کښ ئې دري کاله بادشاهِي وکړه
۳ دَ هغه دَ مور نُوم معکه وه دَ ابيشالوم لُور ۳ او هغه په
ټولو خطاؤ دَده دَ پلار کښ چه له ده ئې وړاندِ کړي وي تلل
کول او دَده زړه له خداوند الله خپل سره سالم نه وه لکه
۴ زړه دَده دَ پلار داؤد ۴ ليکن دَ داؤد دَپاره خداوند الله ده
ته په اورشليم کښ چراغ ورکړ چه پس له ده دَده زوي
۵ ئې قايم کړي او چه اورشليم ټينګ کړي ۵ ځکه چه داؤد هغه
کار وکړ چه دَ خداوند په سترګو کښ راست وه او له هغو
ټولو چه ورته ئې وفرمائل په خپلو ټولو ورځو دَ ژوندانه کښ
دَ هيڅ يوي خبري نه لري نه شه تش دَ اوريا حِتِي په خبري
۶ کښ ۶ او دَ رحبعام په مينځ او دَ يربعام په مينځ کښ ټولي ورځي
۷ دَ ژوندانه دَدوي جنګ وه ۷ او نوري خبري دَ ابيام او هرڅه
چه ده وکړل دوي دَ يهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب
کښ ليکلي شوي نه دِي څه ؟ او دَ ابيام په مينځ او دَ يربعام
۸ په مينځ کښ جنګ وه ۸ بيا ابيام له خپلو پلرونو سره څملاست
او دَ داؤد په ښهر کښ ئې ښخ کړ او آسا دَده زوي دَده په
ځاي بادشاه شه

۹ ۹ او په شلم كال دَ يربعام بادشاه دَ اسرائيل آسا په
۱۰ يهوداه بادشاهِي وکړه ۱۰ او هغه يو څلويښت كاله په اورشليم
کښ بادشاهِي وکړه او دَ هغه دَ مور نُوم معکه لُور دَ ابيشالوم

۱۱ او آسا هغه وکړل چه دَ خداوند په سترګو کښِ راست وُو ۱۱
لکه داؤد دَده پلار ۱۲ او ګونیان ئې له زمکي وويستل او ۱۲
هغه ټول بُتان چه دَده پلارونو جوړ کړي وُو لري کړل ۱۳ او ۱۳
ده هم خپله مور معکه له ملکِي توب نه خارجه کړه ځکه چه
دي دَ اشيراه يو پليت بُت جوړ کړه او آسا دَدي پليت بُت پرېکړه
او دَ قدرون په رود کښِ ئې وسوزاوه ۱۴ او لوړي ئې لري ۱۴
نه کړي شوي ليکن دَ آسا زړه له خداوند سره دَده په ټولو
ورځو کښِ سالم وه ۱۵ او ده دَ خپل پلار پاک څيزونه او ۱۵
خپل پاک څيزونه بيتِ يهوه ته دَ سپينو زرو او دَ سرو زرو
او کالي ننه راوړل ۱۶ او دَ آسا په مينځ او دَ بعشا بادشاه دَ ۱۶
اسرائيل په مينځ کښِ ټولي ورځي دَدوي جنګ وه ۱۷ او بعشا ۱۷
بادشاه دَ اسرائيل په يهوداه باندِ وختو او راماه ئې بِنا کړه
تا چه هيڅوک پري نه ږدِي چه دَ يهوداه بادشاه آسا ته تله
او راتله وکاندِ ۱۸ او آسا ټول سپين او سره زر چه دَ بيت ۱۸
يهوه په خزانو کښِ او دَ بادشاه دَکور په خزانو
کښِ پاتي وُو واخستل او دَ خپلو
مريونو په لاس ئې ورکړل او هغوي آسا بادشاه بِنهدد بن
طبريمون بنِ حريون بادشاه دَ آرام ته چه په دمشق کښِ اوسيدونکی
وه واستول و ئې ويل ۱۹ چه ځما په مينځ کښِ او ستا په مينځ ۱۹
کښِ او ځما دَ پلار په مينځ او ستا دَ پلار په مينځ کښِ عهد
دِ وِي ګوره ما تا ته دَ سپينو زرو او دَ سرو زرو پيشکشئ
درواستولي او ته راشه خپل عهد له بعشا بادشاه دَ اسرائيل
سره مات کړه او هغه به رانه وَخيژِي ۲۰ نو بِنهدد دَ آسا بادشاه ۲۰
واوريدل او دَ لښکرو سرداران ئې چه ورځه وُو دَ اسرائيل
په ښهرونو کښِ واستول او عيون او دان او آبيل بيت معکه

۲۱ او ټول کنورت له ټولي زمکي دَ نفتالي سره وهل ۲۱ او داسي
وشوه چه بعشا واوريدل نو دَ رامه ښنا کولو ئي پرېښودل
۲۲ او په ترځه کښ واوسيده ۲۲ او آسا بادشاه ټول يهوداه
وبلل هيڅوک ناغه نه وه نو هغو ټول کاڼري دَ رامه واخستل
او دَ هغه ټول لرګي چه ورسره بعشا بنا کړي وُو او په دوي
۲۳ سره آسا بادشاه جبعه دَ بنيامين او مصفاه بنا کړل ۲۳ او
باقي ټولي خبري دَ آسا او ټول قوت دَده او هرڅه چه ئي وکړل
او هغه ښهرونه چه بنا ئي کړل دوي دَ يهوداه دَ بادشاهانو دَ
روزنامي په کتاب کښ ليکلي شوي نه دي څه؟ بې له دي دَ
۲۴ زوړوالي په وقت کښ په خپلو پښو رنځور شه ۲۴ بيا آسا له
خپلو پلارونو سره څملاست او له خپلو پلارونو سره دَ داؤد
پلار خپل په ښهر کښ ښخ کړي شه او يهوشافاط زوي ئي
دَده په ځاي بادشاهي وکړه
۲۵ ۲۵ او ناداب زوي دَ يربعام په اسرائيل باندِ بادشاه شه
په دويم کال دَ آسا بادشاه دَ يهوداه او په اسرائيل ئي دوه
۲۶ کاله بادشاهي وکړه ۲۶ او دَ خداوند په سترګو کښ ئي شرارت
وکړ او دَ خپل پلار په لاري لاړ او په هغو خطاؤ چه اسرائيل
۲۷ پري خطا وکړه ۲۷ او بعشا زوي دَ اخيّا دَ يسّاکر دَ کور ورته
سازش وکړ او بعشا ئي په جبتون دَ فلسطيانو کښ وواهه او
۲۸ ناداب او ټول اسرائيل په جبتون قلع بند کوڼکي وُو ۲۸ او په
دريم کال دَ آسا بادشاه دَ يهوداه بعشا هغه مړکه او دَ هغه
۲۹ په ځاي بادشاه شه ۲۹ او داسي وشوه چه دَي بادشاه کيده نو
ټول کور دَ يربعام ئي وواهه او يو ساه اخستونکي دَ يربعام ئي
باقي پري نه ښود څو چه ئي برباد کړل په موافق دَ کلام دَ خداوند
۳۰ چه دَ خپل بنده اخيّا دَ هغه شلوني ئي کلام وکړ ۳۰ دَ يربعام

په هغو خطاؤ چه ده خطا وکړي او چه بني اسرائيل ئې هم
خطاکار کړ په هغه خپه کيدني چه خداوند الله دَ اسرائيل ئې
پرِ خپه کړ ۳۱ او نوري خبرې دَ ناداب او هرڅه چه ده وکړل ۳۱
هغه دَ اسرائيل دَ بادشاهانو دَ روزنامې په کتاب کښ ليکلي شوي
نه دي څه ۳۲ او دَ آسا په مينځ او دَ بعشا بادشاه دَ اسرائيل ۳۲
په مينځ کښ ټولي ورځي دَدوي جنګ وه
۳۳ او په دريم کال دَ آسا بادشاه دَ يهوداه کښ بعشا ۳۳
بن اخياه په ټول اسرائيل په ترضه کښ ترڅليرويشت کاله بادشا
شه ۳۴ او هغه دَ خداوند په سترګو کښ شرارت وکړ او دَ ۳۴
يربعام په لارې او دَده په هغه خطا کښ چه اسرائيل ئې پرِ
خطاکار کړ وګرزيده ❊

# شپاړسم باب

۱ او دَ خداوند کلام ياهو بن حنانې ته دَ بعشا په خلاف راغې ۱
وئې ويل ۲ دي دَپاره چه ما ته له خاورې پورته کړي او ته مې ۲
په خپل اُمّت اسرائيل آمير مقرّر کړې او ته دَ يربعام په
لارې لارې او څما اُمّت اسرائيل دِ خطاکار کړ او زه دِ دَ
هغو په خطاؤ خپه کړم ۳ ګوره زه به دَ بعشا نسل نيست ۳
او دَده دَ کور نسل او ستا کور به دَ يربعام بن نباط دَ کور
په شان کيږدم ۴ هغه چه بعشا لره په ښهر کښ مړ شي ۴
سپي به ئې وخوري او هغه چه ده لره په پټي کښ مړ شي
دَ آسمان مرغان به ئې وخوري ۵ او نوري خبرې دَ بعشا او ۵
هغه چه ده وکړلي او دَده قوّت دَ اسرائيل دَ بادشاهانو
دَ روزنامې په کتاب کښ ليکلي شوي نه دي څه؟ ۶ او بعشا ۶
له خپلو پلارونو سره څملاست او په ترضه کښ

۷ بنج کړي شه ذده زوي ایلاه ذده په ځاي بادشاه شه ۷ او هم په
لاس د یاهو بن حنانا هغه نبي د خداوند کلام په بعشا
راوړ او ذده په کور او په ټول شرارت چه د خداوند په
سترګو کښ ئي وکړ چه قهر ته ئي ولمځوي د خپلو لاسونو په
کار سره چه دي د یربعام د کور په شان وه او په دا چه
هغه ئي وواهه
۸ ۸ او په شپږویشتم کال کښ د آسا بادشاه د یهوداه
ایلاه زوي د بعشا په اسرائیل په ترضه کښ دوه کاله بادشاهي
۹ وکړه ۹ او ذده په خلاف د دوو مریونو زمري سردار د نیمو کاډیو
سازش وکړ او ده په ترضه په مستئ سره ځښل د ارصا
۱۰ په کور کښ چه د ترضه په کور باند وه ۱۰ نو زمري ورننه وت
او و ئي واهه او مړ ئي کړ په اوویشتم کال د آسا بادشاه د
۱۱ یهوداه او د هغه په ځاي ئي بادشاهي وکړه ۱۱ او چه دي بادشاه
شه او چه په تخت کښیناست نو ټول کور د بعشا ئي وواهه
هیڅ وړوکي نر هلک ئي پري نه ښود نه خپلوان او نه دوستان
۱۲ ئي ۱۲ او زمري ټول کور د بعشا نیست کړ موافق د کلام د خداوند
چه د بعشا په خلاف ئي د یاهو هغي نبي په لاس کلام وکړ
۱۳ ۱۳ د بعشا د ټولو خطاؤ د پاره او د هغه د زوي ایلاه د
خطاؤ د پاره هغه چه دوي خطا وکړه او اسرائیل ئي خطاکار
کړ د پاره د خپه کولو د خداوند الله د اسرائیل د دوي په
۱۴ بطلانونو ۱۴ او نوري خبري د ایلاه او هر څه چه ده وکړل دوي
د اسرائیل د بادشاهانو د روزنامي په کتاب کښ لیکلي شوي
نه دي څه؟
۱۵ ۱۵ په اوویشتم کال د آسا بادشاه د یهوداه زمري په
ترضه کښ اوه ورځي بادشاهي وکړله او امت په جبثون دیره کوکي

١٦ وه چه دَ فلسطيانو دَي ١٦ نو هغه ډېره کوڼکي واوريدل چه
خوک وايي چه زمرِي سازش وکړ او بادشاه ئې هم وواهه او
ټول اسرائيل عمرِي سردار دَ لښکر لره په اسرائيل په دغې ورځې
١٧ کښې په ډېرې کښې بادشاه کړ ١٧ او عمرِي وخوت او ټول اسرائيل
١٨ ور سره له جبتون او ترضه ئې قلعبند کړ ١٨ او داسې وشول چه
زمرِي وليده چه ښهر ونيولې شه نو دَ بادشاه دَ کور کوټ ته
ننه وت او په خپل ځان باندِ ئې دَ بادشاه کور په اور وسيځه
١٩ او مړ شه ١٩ په خپلو خطاؤ باندِ چه ده خطا وکړه چه
شرارت ئې دَ خداوند په سترګو کښې وکړ او چه دَ يربعام
په لارې ئې تلل کاوه او ده دَ هغو په خطاؤ کښې چه و ئې
٢٠ کړې چه اسرائيل ئې خطاکار کړ ٢٠ او نورې خبرې دَ زمرِي
او هغه فتنه چه ده فتنه وکړه هغه دَ اسرائيل دَ بادشاهانو
دَ روزنامې په کتاب کښې ليکلې شوې نه دِي څه؟
٢١ ٢١ هغه وقت دَ اسرائيلو اُمّت دَ دوې بخرې شه او نيم اُمّت
په تبنِي بن جينت پسې وه چه بادشاه ئې کړ او نيم په عمرِي
٢٢ پسې وه ٢٢ او هغه اُمّت چه په عمرِي پسې وه په هغه اُمّت
چه په تبنِي بن جينت پسې وه غالب شه او تبنِي مړ شه
٢٣ او عمرِي بادشاه شه ٢٣ په يو ديرشم کال دَ آسا بادشاه دَ
يهوداه عمرِي په اسرائيل باندِ دوه لس کاله بادشاهي وکړه
٢٤ په ترضه کښې ئې شپږ کاله بادشاهي وکړه ٢٤ او دَ سمرون
غرۀ ئې له شامر نه وپيرود په دوه قنطارو دَ سپينو زرو ئې
وپيرود او په غره باندِ ئې بنا وکړه او دَ هغه ښهر نوم چه
٢٥ ده بنا کړ دَ شامر په نوم دَ ځاوند دَ غره ئې وباله ٢٥ او عمرِي
دَ خداوند په سترګو کښې بدي وکړه له هغو ټولو چه له ده
٢٦ وړاندِ وُو ډېره بدي ئې وکړه ٢٦ او په ټولو لارو دَ يربعام بن نباط

کښې لاړ شه او دَ هغه په خطا کښې چه په اسرائيل ئي خطا
وکړه چه خداوند الله دَ اسرائيل په خپلو بطلانونو سره خپه
٢٧ کړي ٢٧ او نوري خبري دَ عمري چه ده وکړي او دَ هغه خبري
چه وئي کړي دوي دَ اسرائيل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب
٢٨ کښې ليکلي شوي نه دي څه ؟ ٢٨ او عمري له خپلو پلرونو سره
خملاست او په سامره کښې ښخ کړي شه او دَ ده زوي آخياب
دَ ده په ځاي بادشاه شه
٢٩ ٢٩ او آخياب بن عمري په اته ديرشم کال دَ آسا بادشاه
دَ يهوداه په اسرائيل بادشاه شه او آخياب بن عمري په
اسرائيل باندِ په سامريه کښې دوه ويشت کاله بادشاهي وکړه -
٣٠ ٣٠ او آخياب بنِ عمري دَ خداوند په سترګو کښې بدِي وکړه
٣١ له هغو ټولو نه چه له ده وړاندِ وُو ٣١ او داسي وشوه لکه
چه دا خبره سپکه وه چه دي دَ يربعام بنِ نباط په خطاؤکښې
لاړ شِي نو ده ازبل لُور دَ اثبعل بادشاه دَ صيدونيانو ښځه
واخسته او لاړ او دَ بعل عبادت ئي وکړ او سجده ئي ورته وکړه
٣٢ ٣٢ او بعل ته ئي په هغه بيت بعل کښې چه ده په سامريه
٣٣ کښې بِنا کړ يو مذبح پورته کړه ٣٣ او آخياب هغه اشيراه
جوړه کړه او آخياب په کولو کښې ډير زيات والي وکړ دَپاره دَ
ټهرولو دَخداوند الله دَ اسرائيل له هغو ټولو بادشاهانو دَ
٣٤ اسرائيل چه له ده وړاندِ وُو ٣٤ او دَده په ورځو کښې حيئيل
هغه بيت ايلي اريحا بنا کړ په ابيرام مشر خپل ئي دَ هغه
بنيادونه کيښوول او په سجوب کشر خپل ئي دَ هغه دروازي
ودرولي موافق دَ هغه کلام دَ خداوند چه ده دَ يهوشوع
بنِ نون په لاس کلام وکړ *

# اوه لسم باب

آ نو الیاه تشبي چه دَ جلعاد له استوریو وه اخیاب ته ۱
يُ وویل چه **یهوه** دَ اسرائیل الله حيّ دَيَ هغه چه زه
دَهٔ دَ وړاندِ ولاړ یم چه په دي کالونو کښ به نه شبنم وِي
او نه باران مگر ځما دَ خُلي په خبري سره ۲ او دَ خداوند ۲
کلام ده لره راغي و يُ ویل ۳ چه له دي ځایه لاړ شه او دَ ۳
مشرق په لورِي خپل مخ کړه او دَ کریت په رود کښ چه دَ اردن
په مخامخ دَيَ پټ شه ۴ او داسي به وښِي ته به له هغه رودَ ۴
وڅښي او ما قارغانو ته فرمایلي دِي چه دوي به هلته کښ
ستا پرورش وکړِي ۵ نو هغه روان شه او دَ خداوند دَ کلام ۵
په موافق يُ وکړل او لاړ او دَ کریت رود ځخه چه دَ اردن
په مخامخ دَيَ مقام شه ۶ او قارغانو به ډوډئ او غوښي ۶
په صبا کښ ورته راوړل او ډوډئ او غوښي په نماښام کښ
او له روده به يُ څښل ۷ او په ختم دَ ورځو داسي وشول چه ۷
هغه رود وچ شه ځکه چه باران په زمکه نه وه ۸ او دَ خداوند ۸
کلام ده لره راغي و يُ ویل ۹ پورته شه او صرفة ته چه دَ ۹
صیدون دَيَ لاړ شه او هلته کښ مقام شه گوره چه ما
هلته کښ یوي کُنډي ښځي ته فرمایلي دِي چه ستا پرورش
وکړِي ۱۰ نو دَيَ پورته شه او صرفة ته لاړ او دَ ښهر دروازي ۱۰
ته ورغي او گوره هلته هغي کُنډي ښځي لرګي ټولول او ده
هغي ته ناري کړي و يُ ویل چه ما ته لږ ځه اوبه په لوښي
کښ راوړه چه و يُ څښم ۱۱ او چه هغه اخستلو له تلله ۱۱
نو ده ورته ناري کړي و يُ ویل چه په خپل لاس کښ یوه
ټکړه دَ ډوډئ را واخله ۱۲ او هغي وویل چه هغه خداوند ۱۲

سنا الله حي دئ چه ما څخه کاک نشته مګر که دَ لاس
ډکوالي دَ اوړو په کوډي کښ وِي او لږ څه تيل په کوزي
کښ او ګوره زه دوه لرګي ټولوم چه راشم او دَ ځان دَپاره او
دَ خپل زوي دَپاره ئي تيار کړم چه و ئي خورو او مړه شُو
١٣ نو ايلياه ورته ووېل مه وېرېږه لاړه شه او دَ خپلو ويلو ١٣
په موافق وکړه ليکن ما له ورنه يو وړوکي کاک اول جوړ کړه او
را وئي باسه او بيا ئي ځان له او زوي له تيار کړه ١٤ ځکه چه ١٤
خداوند الله دَ اسرائيل داسي وائي چه کوډي دَ اوړو به خالي
نه شي او کوزه دَ تيلو به کمه نه شي تر هغي ورځي پوري چه
خداوند د زمکي په مخ باران ورکړي ١٥ نو هغه لاړه او دَ ايلياه ١٥
دَ ويلو په موافق ئي وکړل او دي او هغه او دَ هغي کور تر
زماني خوړل ١٦ کوډي دَ اوړه نه خالي کيده او کوزه دَ تيلو ١٦
نه کمېده موافق دَ کلام دَ خداوند چه دَ ايلياه په لاس ئي
ويل ١٧ نو پس له دي خبرو دَ هغي ښځي دَ کور دَ ميرمني زوي رنځور ١٧
شه او رنځورِي ئي ډېره سخته شوه څو چه په کښ دم پاتي نه شه
١٨ نو هغي ايلياه ته ووېل ما لره او تا لره څه دِي اي مردِ الله ١٨
ته ماته راغلي چه څما ګناه را په ياد کړي او څما دِ زوي مړ شِي
څه؟ ١٩ او هغه دي ته ووېل چه زوي دِ ماته راکړه او دَ هغي ١٩
له غېږي ئي واخست او هغي بالاخانۍ ته چه په کښ مقيم وه
و ئي خېژاوه او په خپل کټ ئي څملاوه ٢٠ او خداوند ته ئي نعره ٢٠
وکړه و ئي ويل چه اي يهوه الله څما تا دغي کُنډي ته هم چه
زه ورځنه استوګنه کوم دَ زوي په مړ کولو بلا را واستوله ٢١ او ٢١
ده په هغه هلک دري واره ځان وغزاوه او خداوند ته ئي
نعره وکړه و ئي ويل اي يهوه الله څما را وجار باسه سا دَدي
هلک دَده په دننه کښ ٢٢ نو خداوند دَ ايلياه آواز واورېده ٢٢

او دَ هغه هلک سا دَده په دننه کښې را وچاروته او ژوندي شه
۲۳ ۲۳ او ایلیاه هغه هلک واخست او له بالاخانې نه ئې کور ته
راکوز کړ او دَ هغه مور ته ئې ورکړ او ایلیاه وویل گوره زوی
۲۴ دِ ژوندي دَی ۲۴ نو هغې ښځې ایلیاه ته وویل چه په دې وقت
پوه شوم چه ته مردِ الله یې او چه دَ خداوند کلام ستا په خولې
کښې رښتنیَ دَی ❊

# اَتلسم باب

۱ ۱ او پس له ډیرو ورځو دَ خداوند کلام ایلیاه ته راغي په دریم
کال و ئې ویل لاړ شه او آخیاب ته ښکاره شه چه زه به دَ
۲ زمکې په مخ باران وکړم ۲ نو ایلیاه لاړ چه آخیاب ته ښکاره شي
۳ او په سامره کښې سخته لوږه وه ۳ نو آخیاب عوبدیاه چه په کور
۴ وه وباله او عوبدیاه به له یهوه ډیر ویریده ۴ او داسې وشوه هغه
وقت چه ایزبل دَ یهوه نبیان پرې کړل نو عوبدیاه یو سل نبیان
واخستل او پنځوس پنځوس سرې ئې په غار کښې پټ کړل او په
۵ ډوډۍ او په اوبو ئې پالل ۵ او آخیاب عوبدیاه ته وویل چه په
زمکه لاړ شه ټولو چینو دَ اوبو ته او هغو ټولو رودونو ته گوندې
وِي چه واښه ومومو او آسونه او قچرې ژوندِي کړو او ټول
۶ څاروِي ورک نه کړو ۶ نو دوی زمکه وویشله چه په کښې تیر شي
آخیاب په یوې لارې گوښې لاړ او عوبدیاه په بلې لارې گوښې لاړ
۷ ۷ او چه لا عوبدیاه په لارې وه گوره چه ایلیاه پرِ پیښ شه او
هغه وپیژاند او پرمخ پریوت و ئې ویل چه ته هغه ځما خاوند
۸ ایلیاه یې ۸ او هغه ده ته وویل زه هغه یم لاړ شه خپل خاوند
۹ تهووایه چه گوره ایلیاه ۹ او هغه وویل چه ځما څه خطا ده
۱۰ چه ته خپل مریې دَ آخیاب په لاس ورکوې چه مړ م کړي ۱۰ یهوه
الله ستا حي دَي چه هیڅ قوم او مملکت نشته چه هلته کښې

ځما خاوند ستا دَ لټولو دَپاره استولي نه دِي او چه به ئې ويل
چه نشته نو ده به هغه مملکت او هغه قوم له قسم ورکړ
١١ چه هغوته مندلي نه يې ١١ او اوس ته وايي لاړ شه خپل
١٢ خاوند ته ووايه چه ګوره ايلياه ١٢ او داسي به وِي چه زه له
تانه لاړ شم نو دَ خداوند روح به دِ يوسِي هغه ځاي ته چه
زه ئې نه پيژنم او چه زه راشم دَ آخياب دَ ښرګندولو دَپاره او
هغه تا ونه مومِي نو ما به قتل کړِي او زه ستا مريي له هلکوالي
١٣ له يهوه ويريږم ١٣ ځما خاوند ته ښرګند کړي شوي نه دَه څه؟
په هغه چه ما وکړل هغه وقت چه ايزبل دَ يهوه نبيان قتل
کړل او ما دَ يهوه له نبيانو سل سړِي پنځوس پنځوس سړِي
په مغاري کښې پټ کړل او په ډوډي او په اوبو مِ ئې پرورش
١٤ وکړ ١٤ او ته اوس وايي لاړ شه خپل خاوند ته ووايه ګوره
١٥ ايلياه او هغه به مِ قتل کړِي ١٥ نو ايلياه وويل چه هغه
يهوه دَ لښکرو حيّ دَي چه زه دَ هغه دَ وړاندِ ولاړ يم
١٦ چه نن ورځ به خپل ځان ورښکاره کړم ١٦ نو عوبدياه دَ آخياب
ملاقات ته لاړ او هغه ته ئې ښرګند کړل او آخياب دَ ايلياه
١٧ ملاقات ته ورغي ١٧ او چه آخياب ايلياه وليد نو ورته ئې وويل
١٨ چه ته خړوونکي دَ اسرائيل ئې څه؟ ١٨ او هغه وويل چه زه
دَ اسرائيل خړوونکي نه يم بلکه ته او ستا دَ پلار کور چه دَ
١٩ يهوه فرمانونه مو ترک کړل او په بعليم پسي وګرزيدلئ ١٩ نو اوس
واستوه او ماته ټول اسرائيل دَ کرمل وغره ته راجمع کړه او
نبيان دَ بعل څلور سوه پنځوس او نبيان دَ اشراه څلور سوه
٢٠ چه دَ ايزبل په خوانچي خوړونکي دِي ٢٠ نو آخياب ټولو بني‌اسرائيلو
٢١ ته واستاوه او نبيان ئې دَ کرمل غره ته راجمع کړل ٢١ نو ايلياه
ټول اُمّت ته نژدي شه او و ئې ويل چه تاسي به ترکومه پورِي

دَ دوو اطرافو په مينځ کښې پيچ وتاؤ کېږئ ؟ که يهوه هغه الله
دَی نو په ده پسې شئ او که بعل وِی نو په هغه پسې شئ
او هغه اُمّت ورته په هيڅ خبره ځواب ورنه کړ ۲۲ او ايلياه ۲۲
اُمّت ته ووئيل چه زه يهوه لره يواځې نبي پاتې يم ليکن دَ بعل
نبيان څلور سوه پنځوس سړي دِي ۲۳ او مونږ ته دِ دوه غوايان ۲۳
راکړي او دوي دِ دَ خپلو ځانونو دَپاره يو غويي غوره کړي ټکړي
ټکړي دِ ئې کړي او په لرګو دِ ئې کېږدي او اور دِ پرِ نه
لګوي او زه به بل غويي تيار کړم او په لرګو به ئې کېږدم
ليکن اور به پرِ نه لګوم ۲۴ او تاسي دَ خپلو خدايانو نُوم وبولئ ۲۴
او زه به دَ يهوه په نُوم وبولم نو هغه الله چه له اوره
ځواب راکړي نو هغه به الله وِي نو ټول اُمّت ځواب ورکړو ئې
ووئيل چه دا خبره ښه ده ۲۵ نو ايلياه دَ بعل نبيانو ته ووئيل ۲۵
چه تاسي دَ خپلو ځانونو دَپاره يو غويي غوره کړئ او اوّل
ئې تيار کړئ ځکه چه تاسي ډير يئ او دَ خپلو خدايانو نوم
وبولئ ليکن اور ورته مه بِدئ ۲۶ نو هغو هغه غويي چه ۲۶
دوي ته ورکړي شوي وه واخست او تيار ئې کړ او دَ بعل
نوم ئې له صباحَ تر ټکنرهِ غرمي پوري وباله ووئيل ئې اي بعلَ
مونږ ته ځواب راکړه او نه آواز وه او نه ځواب ورکونکي او دوي
دَ هغه مذبح چاپيره چه جوړه شوي وه پيچ او تاؤونه وکړل -
۲۷ او په ټکنرهِ غرمي ايلياه په دوي پوري وخندل چه په لوړآواز ۲۷
سره ئې ووئيل ځکه چه هغه خداي دَی يا به له ځان سره خبري
کوِي يا يو خوا ته به تلي وِي يا به په سفر کښې وِي يا به ګوندِ
اوده وِي نو وِښ کيدل ئې ښکار دَی ۲۸ نو هغو په لوړ آواز ۲۸
سره نعري وکړي او دَ خپل دستور په موافق ئې خپل ځانونه
په تُورو او په نيزو ژوبل کړل څو چه وينې په دوي توي

۲۹ شولي ۲۹ او داسې وشول چه تکنره غرمه تيره شوه او دوي
دَ قربانۍ خبېژولو تر وقت پورې نبوّت کاوه او نه آواز او نه
۳۰ ځواب ورکونکي او نه نغوږونکي وه ۳۰ او ايلياه هغه ټول اُمّت
ته وويل چه ما ته را نژدې شئ او ټول هغه اُمّت ورنژدې
۳۱ شه نو ده دَ يهوه هغه نړيدلي مذبح مرمت کړه ۳۱ نو ايلياه
دوه لس کاڼي دَ بني يعقوب دَ فرقو دَ شمار په موافق واخستل
هغه چه کلام دَ يهوه ده ته وويل چه ستا نوم به اسرائيل
۳۲ وي ۳۲ او په هغو کاڼو ئې دَ يهوه په نُوم مذبح بنا کړه او دَ هغه مذبح چاپيره ئې
۳۳ خندق جوړ کړ لکه چه دوه پيمانې دَ تخم په کښې ځاى دي ۳۳ بيا
ئې لرگي په ترتيب سره کيښول او هغه غويي ئې ټکړې ټکړې کړ
او په لرگو ئې کيښود او وئې ويل چه څلور منگي دَ اوبو ډک
۳۴ کړئ او په سيزونکي قربانۍ او په لرگو ئې تويې کړئ ۳۴ بيائې وويل
دوباره وکړئ او هغو دوباره وکړل او ده وويل دريم ځل وکړئ او هغو دريم ځل وکړل
۳۵ ۳۵ او اوبه دَ مذبح چاپيره ووتلي او خندق ئې له اوبو ډک کړ
۳۶ ۳۶ او داسې وشول دَ قربانۍ په سيزولو نو ايلياه هغه نبي
نژدې شه وئې ويل اې يهوه الله دَ ابرهام او دَ اسحاق او
دَ اسرائيل نن ورځ دِ معلوم وي چه ته په اسرائيل کښې الله
يې او زه ستا بنده يم او ستا په کلام سره دا ټولې خبرې مې
۳۷ کړې دي ۳۷ ما ته ځواب راکړه اې يهوه ځواب راکړه چه دا اُمّت
پوه شي چه ته يهوه هغه الله يې او تا دَ هغو زړونه پسته
۳۸ وگرزول ۳۸ نو دَ يهوه اور راپريوت او سيزونکي قرباني ئې وخوړه
او لرگي او کاڼي او خاوري او هغه اوبه چه په خندق کښې
۳۹ وې وئې څټلې ۳۹ او چه ټول هغه اُمّت دا وليدل په خپلو
مخونو پريوتل او وئې ويل چه يهوه هغه الله دې يهوه
۴۰ هغه الله دې ۴۰ نو ايلياه هغه ته وويل چه دَ بعل

نبیان ونسئ له هغوي يو سړی و نه تښتيږي اووئ نيول او ايلياه
٤١ هغوي دَ قيشون ورود ته کوز کړل او هلته ئي ذبح کړل ٤١ او
ايلياه آخياب ته ووئيل وخيژه وخوره وڅښه ځکه چه آواز
٤٢ دَ لوي باران دی ٤٢ نو آخياب وخوت چه وخوري او وڅښي او
ايلياه دَ کرمل سر ته وخوت او زمکي ته ټيټ شه اوخپل مخ
٤٣ ئي دَ زنګونو په مينځ کښ کيښود ٤٣ اوخپل ځوان ته ئي ووئيل
وخيژه دَ درياب و لاري ته وګوره او هغه وخوت او و ئي کتل
٤٤ او و ئي ويل چه هيڅ نشته او ده ووئيل وګرزه اووه واره ٤٤ او
په اوم وار هغه ووئيل ګوره وړوکي غبار دَ سړي دَ ورغوي په
قدر له دريابه راختيږي نو ده ووئيل وخيژه آخياب ته ووايه کاډی
٤٥ وتړه او کوز شه چه باران دِ بند نه کړي ٤٥ او تر دي او تر هغي
پوري داسي وشول چه آسمانونه له غبار او له باد نه تور ووُ
٤٦ او لوي باران وه او آخياب سور شه او يزرعيل ته لاړ ٤٦ او
دَ يهوه لاس په ايلياه وه او ده خپله ملا وتړله او آخياب دَ وړاندِ
وزغليده دَ يزرعيل تر ننه وتني پوري ❊

# نولسم باب

١ آ او آخياب ايزبل ته هر هغه څه چه ايلياه وکړه ځرګند کړل
٢ او چه ده ځرنګ هغه ټول نبيان په توري قتل کړل ٢ نو ايزبل
ايلياه ته قاصد واستوه ويل ئي داسي دِ خدايان وکړي او له
داسي دِ زيات وکړي چه که زه سبا ستا ځان لکه ځان دَ يوه له هغو
٣ نه صبا په داسي وقت کښ و نه کړم ٣ او چه هغه دا وليده
نو پورته شه او دَ خپل ځان دَپاره لاړ او بيرسبعه دَ يهودا
٤ ته ورغي اوخپل ځوان ئي هلته پرېښود ٤ او دی په بيابان
کښ دَ يوي ورځي لار لاړ او راغي او تر رتمه دَ لاندِ کښيناست

او دَ ځان دَپاره ئې مرګ وغوښت و ئې ويل چه اوس بس دَي اي
خداونده ځما ځان واخله ځکه چه زه له خپلو پلرونو ښه نه يم
۵ ۴ او ځملاست او دَ يوه رتمه دَ لاندِ اوده شه او ګوره چه
يوي فرښتي دَ خداوند مسه کړ او ورته و ئې ويل پورته
۶ شه وخوره ۵ او و ئې کتل او ګوره چه دده سرځنګه يو کاک
په انګار پوخ دَي او يوه کوزه دَ اوبو نو ده وخوړل او
۷ وڅښل او وګرزيده او ځملاست ۶ او فرښته دَ خداوند دويم
وار ور وګرزيده او هغه ئې مسه کړ و ئې ويل پورته شه او
۸ وخوره ځکه چه هغه لار ستا دَپاره ډيره لويه ده ۷ نو هغه
پورته شه او و ئې خوړل او و ئې څښل او دَ دغه خوراک په قوّت
څلويښت ورځي او څلويښت شپي دَ الله تر غره حوريب پوري
۹ لار ۸ او هلته کښ مغاري ته ننه وت او شپه ئې هلته تيره
کړه او ګوره دَ خداوند کلام هغه ته راغي او ورته و ئې ويل چه
۱۰ دلته دِ څه دِي اي ايلياه ۹ او هغه وويل چه دَ يهوه الله دَ
لښکرو دَپاره مِ په غيرت سره غيرت کړي دَي ځکه چه بني اسرائيل
ستا عهد پريښودلي دَي او ستا مذبحونه ئې نړولي دِي او ستا
نبيان ئې په توري قتل کړي دِي او زه يواځي پاتي شوم او هغوي
۱۱ ځما ځان لټوي چه واخلي ۱۰ او هغه وويل چه ځه او دَ يهوه
دَ وړاندِ په غره ودريږه او ګوره چه يهوه تير شه او لوي او
تند باد دَ غرونو پري کونکي شه او دَ ګټونو ټوټي کونکي دَ يهوه
دَ وړاندِ او يهوه په باد کښ نه وه او پس له باده زلزله
۱۲ او يهوه په زلزله کښ نه وه ۱۱ او پس له زلزلي اور او يهوه
۱۳ په اور کښ نه وه او پس له اوره يو لطيف نرم آواز ۱۲ او
چه ايلياه واوريده نو خپل مخ ئې په څادر ونغښت او ووت او
دَ مغاري په مدخل کښ ودريده او ګوره ورته آواز وشه

۱۴ او وئي ويل چه دلته دِ څه دِي اي ايلياه ۱۴ او هغه وويل
چه دَ يهوه الله دَ لښكرو دَپاره مِ په غيرت سره غيرت كړي دئ
ځكه چه بني اسرائيل ستا عهد پرېښودلي دئ او ستا مذبحونه
ئې مات كړي دِي او ستا نبيان ئې په تورې قتل كړي دِي او زه
۱۵ يواځې پاتې شوم او دوي ځما ځان لټوي چه وائې خلي ۱۵ نو يهوه
ده ته وويل لاړ شه په خپلې لارې كښې دَ دمشق بيابان ته
۱۶ وګرزه او ننه وزه او حزائيل په ارام بادشاه مسحه كړه ۱۶ ياهو
بن نمشي په اسرائيل بادشاه مسحه كړه او اليشع بن شافاط
۱۷ دَ آبل محوله په خپل ځاي مسحه كړه ۱۷ او داسې به وشي چه هغه
چه دَ حزائيل له تورې خلاص شي ياهو به ئې مړه كړي او
هغه چه دَ ياهو له تورې خلاص شي اليشع به ئې مړه كړي -
۱۸ ۱۸ او ما به اسرائيل كښې اوه زره پاتې كړي دِي چه زنګنونه ئې بعل
ته ټيټ شوي نه دِي او ټولې هغه خولې چه ئې ښكل كړي نه
۱۹ دي ۱۹ نو دې له هغه ځايه لاړ او اليشع بن شافاط ئې وموند
چه يوې ئې كوله او دولس جوړې غوايان ئې دَ وړاندِ وُو او هغه
له دولسمې سره وه نو ايلياه پرِ تېر شه او خپل څادر ئې په
۲۰ هغه واچوه ۲۰ او ده غوايان پرېښودل او په ايلياه پسې وزغليده
وئې ويل چه زه به خپل پلار او خپله مور ښكل كړم او په
تا پسې به روان شم نو هغه ورته وويل لاړ شه وګرزه ځكه
۲۱ چه ما تا له څه وكړل ۲۱ او هغه دَده له ورستو وګرزيده او
يوه جوړه غوايان ئې واخستل او ذبح ئې كړل او دَ غوايې په كالي
ئې هغه غوښې پخې كړې او خلقو ته ئې وركړې او وئې خوړل
او پورته شه او په ايلياه پسې روان شه او خدمت ئې كاوه ✤

## شلم باب

۱ ۱ او بنهدد بادشاه دَ آرام ټول لښكر خپل جمع كړ او دوه ديرش

بادشاهان ورسره او ګاډي او آسونه او وخوت او سمرون
٢ ئې ګير کړ او ورسره وجنګيده ٢ او هغه قاصدان آخياب
بادشاه دَ اسرائيل ته و ښهر ته واستول او ورته ئې وويل
٣ چه بن‌هدد داسې وائي ٣ چه ستا سپين زر او سره زر څما
٤ دي او ستا ښځې او ستا زامن ښائسته هم څما دي ٤ نو دَ
اسرائيل بادشاه ځواب ورکړ و ئې ويل چه ستا دَ خبرې په
موافق اې خاونده بادشاه زه او ټول چه څما دي هغه ستا
٥ دي ٥ نو قاصدان بيا وګرزيدل و ئې ويل چه بن‌هدد داسې
امر کړي دئ او وائي چه ما تاته واستول و م ويل چه ستا
سپين او ستا سره زر او ستا ښځې او ستا زامن ماته راکړه
٦ ٦ نو زه به صبا په دې وقت خپل مريونه تاته دروا ستوم
او هغوي به ستا دَ کور او ستا دَ مريونو دَ کورونو تلاش
وکړي او هر هغه څه چه ستا په سترګو کښ خوښ وي دوي
٧ به هغه په خپلو لاسونو کښ کيږدي او وا به ئې خلي ٧ او دَ
اسرائيل بادشاه ټول سپين ږيري دَ زمکې وبلل او و ئې ويل
چه پوه شئ که نه او ګورئ چه هغه شرارت لټوي څکه چه
ده ماته څما دَ ښځې او څما دَ ځامنو او څما دَ سپينو زرو
او څما دَ سرو زرو دَپاره واستول او ما له هغه منع ونه کړه
٨ ٨ او ده ته ټولو سپين ږيرو او ټول اُمّت وويل چه ته دَ هغه
٩ مه اوره او مه ئې قبلوه ٩ نو ده دَ بن‌هدد قاصدانو ته وويل
چه تاسې خپل خداوند بادشاه ته ووائئ چه ټول هغه څه چه
تا خپل بنده ته ورونبې واستول هغه به زه وکړم ليکن دا
خبره زه توان نه لرم چه و ئې کړم نو هغه قاصدان وګرزيدل
١٠ او هغه ته ئې ځواب وروړ ١٠ او هغه ته بن‌هدد واستول
و ئې ويل چه ما دې خدايان داسې کړي او داسې دې په ما زيات

کړي که چرې خاورې دَ سمروّن دَ مُتّو دَ پاره دَ هغو ټولو قومونو
١١ حسه ځما پيروي کوي کافي شي ١١ نو دَ اسرائيل بادشاه ځواب
ورکړ و ئې ويل تاسي هغه ته ووايئ چه ټړونکي دِ دَ پرانتونکي
١٢ په شان فخر و نه کړي ١٢ او داسي وشوه چه هغه دا خبره
واوريدله او هغه په خيمو کښ هغه او هغي بادشاهانو
وڅښل نو خپلو مريونو ته ئې ويل چه لګيا شئ او دوي
١٣ په ښهر لګيا شول ١٣ او ګوره چه يو نبي آخياب بادشاه دَ
اسرائيل ته نزدي شه او وئې ويل چه خداوند داسي وايي چه
تا دا لوي قوم وليد ګوره زه به هغوي ستا لاس ته نن ورځ
١٤ درکړم نو ته به پوه شي چه خداوند زه يم ١٤ نو آخياب وويل
چه په چا؟ او هغه وويل چه خداوند داسي امر کوي چه دَ
صوبو دَ سردارانو دَ ځوانانو په معرفت او ده وويل چه په جنګ
١٥ به څوک صفونه وتړي او هغه وويل ته ١٥ نو هغه ځوانان دَ
سردارانو دَ صوبو وشميرل او هغوي دوه سوه دوديرش شول
او بيائې ټول هغه اُمّت ټول بني اسرائيل اوه زره ئې وشميرل
١٦ ١٦ او دَ تکزي غرمي په وقت ووتل او بن هدد په خيمو کښ
وڅښل او په سُکر مست شه ده او دوديرش بادشاهان
١٧ چه دَده کومکيان وُو ١٧ نو اول ځوانان سرداران دَ صوبو ووتل
او بنهدد واستول او ده ته ئې څرګند کړ و ئې ويل چه له
١٨ سامري کسان را ووتل ١٨ او ده وويل چه که دَ سلام دَ پاره
را وتلي وِي نو ژوندي ئې ونيسئ او که دَ جنګ دَ پاره راوتلي
١٩ وِي نو هم ئې ژوندي ونيسئ ١٩ نو هغه ځوانان سرداران دَ
٢٠ صوبو ووتل دغه له ښهرَ او هغه لښکر ورپسي وه ٢٠ او دَ
دوي هر سړي دَ هغه سړي ووهل او آراميان وتښتيدل
او اسرائيل ورپسي شول او بن هدد بادشاه دَ آرام په آس

۲۱ له سوارو سره خلاص شه ۲۱ او دَ اسرائیل بادشاه ووت او
آسونه او گاډِي ئې ووهل او آرام ئې په لوي وهني سره وواهه
۲۲ ۲۲ او هغه نبي دَ اسرائیل بادشاه ته ورنژدې شه ورته ئې
وويل لاړ شه او ځان ټکړه کړه او پوه شه او گوره چه
ته څه کوې ځکه چه دَ کال په جاروتلو کښ به دَ آرام بادشاه
په تا باندِ راوخیژي
۲۳ ۲۳ او دَ آرام دَ بادشاه مريونو هغه ته وويل چه
دَ دوي خدايان دَ غرونو خدايان دِي په دې سبب په مونږ
مضبوط شول لیکن که مونږ له دوي سره په میدان کښ
۲۴ وجنگیږو نو په یقین سره به مونږ ورته مضبوط شو ۲۴ او
دا کار وکړه بادشاهان هريو له خپله مکان لرې کړه او حاکمان
۲۵ دَ هغو په ځاي مقرر کړه ۲۵ او دَ ځان دَپاره هسې لښکر شمار
کړه لکه چه درنه پريوت آس په آس او گاډي په گاډي نو
مونږ به په میدان کښ ورسره وجنگیږو او په یقین سره به
ورنه مضبوط شو او هغه دَ دوي خبره واوريده او هسې ئې
۲۶ وکړل ۲۶ او دَ کال په جاروتلو کښ داسې وشول چه بنهدد
آراميان وشميرل او آفیق ته وخوت چه له اسرائیل سره جنگ
۲۷ وکړي ۲۷ او بني اسرائیل خو شمار کړي وه او خواره کړي شوي
وُو او دَ هغو مقابلي ته ورغلل او بني اسرائیل دَ هغو په مخ
کښ ډيره شول دَ بزو دَ دوو کنډکو په شان او آراميانو زمکه
۲۸ ډکه کړه ۲۸ او مردِ الله رانژدې شه او دَ اسرائیل بادشاه
ته ئې خبره وکړه وئې ويل چه يهوه داسې امر کوي دَ دې دَپاره
چه آراميانو وويل چه يهوه دَ غرونو الله دَي او هغه دَ
خوړنو الله نه دَي زه به دا لوي قوم ستا په لاس کښ درکړم
۲۹ نو هغوي به پوه شي چه يهوه زه يم ۲۹ نو دغه هغوي ته

مخامخ تر اوه ورځو ډيره وکړه او په اتمه ورځ داسي وشول
چه په جنګ سره ګډ شول او بني اسرائيلو له آراميانو سل
۳۰ زره پياده په يوي ورځي ووهل ۳۰ او هغه پاتي شوي دَ افيق
ښهر ته وتښتيدل او په اوه ويشتو زرو پاتي شويو سړيو
ديوال پريوت او بن‌هدد وتښتيده او ښهر ته خوني په خوني
۳۱ ننه‌وت ۳۱ او دَده مريونو ورته وويل ګوره که نه مونږ اوريدلي
دِي چه دَ اسرائيل دَ کور بادشاهان مهربانان بادشاهان
دِي نو مونږ دِ په خپلو ملاؤ شيړۍ کيږدو او په خپلو
سرونو دِ بياستي او دَ اسرائيل بادشاه ته دِ ورشو ګنډِ
۳۲ ستا دَ ځان ژوند پريږدِي ۳۲ نو دوي په خپلو ملاؤ شړۍ
وتړلي او په خپلو سرونو ئي بياستي او دَ اسرائيل بادشاه
ته ورغلل و ئي ويل چه ستا مريي بن‌هدد وايي چه ځما
ځان ژوندي پريږده هغه وويل چه دَي لا تر اوسه ژوندي
۳۳ دَي څه؟ هغه ځما ورور دَي ۳۳ او هغه کسان چه بجومیان
وُو جلدِئ ئي وکړه او هغو وويل دا دي ستا ورور بن‌هدد او
هغو وويل لاړ شيءِ را ئي ولئ نو بن‌هدد ورته ووت او
۳۴ ده خپل ګاډِي ته وخيژاوه ۳۴ او ده هغه ته وويل چه زه به
هغه ښهرونه چه ځما پلار ستا له پلار نه اخستلي وه بيرته
درکړم او ته به دَ خپل ځان دَپاره به دمشق کښ کوڅي کيږدي
لکه چه ځما پلار په سمرون کښ ګينبودلي او هغه وويل چه زه
به دِ په دي وعدي رخصت کړم نو هغه سره ئي وعده وکړه او
رخصت ئي کړ

۳۵ ۳۵ او يو سړي له بني نبيانو خپل ملګري ته دَ يهوه په
کلام سره وويل چه ته ما ووهه او هغه سړي دَده له وهلو
۳۶ انکار وکړ ۳۶ او ده هغه ته وويل دي دَپاره چه تا دَ يهوه قول

وانه وریده نو ګوره چه ته له مانه دروني نو زمري به دِ
مړ کړي او چه دَده له څنګه هغه لاړ نو زمري هغه وموند
۳۷ او مړ ئې کړ ۳۷ بیا بل سړيَ ئې وموند او ورته ئې وویل ما
۳۸ ووهه او هغه سړي په وهلو وواهه او ژوبل ئې کړ ۳۸ نو هغه
نبي لاړ او دَ بادشاه دَپاره په هغه لار کښ ودریده او خپل
۳۹ ځان ئې په دستار په سترګو بدل کړ ۳۹ او چه بادشاه تیریده
نو بادشاه ته ئې نعره وکړه و ئې ویل چه ستا بنده دَجنګ
و میَنځ ته ور ووت او ګوره چه یو سړيَ وګرزیده او سړيَ
ئې ما ته راوست و ئې ویل چه دا سړيَ وساته او که چرې
دا په لټولو ولټولې شي نو ستا ځان به دَده دَ ځان په ځاي
کښ وي او که نه نو ته به یو قنطار دَ سپینو زرو وزن
۴۰ ورکړي ۴۰ او داسي وشول چه ستا بنده دلته او هلته مشغول
دي نو هغه نښته: او ده ته بادشاه دَ اسرائیل وویل چه هم
۴۱ هسي دِ ستا فتویٰ وي چه تا پخپله مقرّره کړه ۴۱ او هغه
بیړه وکړه او دستار ئې له خپلو سترګو لرې کړ او دَ اسرائیل
۴۲ بادشاه هغه وپیژاند چه له نبیانو دیَ ۴۲ او هغه ده ته
وویل چه یهوه داسي وایي دي دَپاره چه تا له خپله لاسه
یو سړيَ چه ما حرم کړي وه رخصت کړ نو ستا ځان به دَ
هغه دَ ځان په ځاي کښ شي او ستا اُمّت به دَ هغه
۴۳ دَ اُمّت په ځاي کښ ۴۳ نو دَ اسرائیل بادشاه خپل کور
ته خپه او غمجن لاړ شه او سامرون ته راغي *

## یو ویشتم باب

۱ آ او پس له دي خبرو داسي وشول چه نابوت یزرعیلي لره په
یزرعیل کښ تاکستان وه په څنګ دَ محل دَ آخیاب بادشاه

۲ دَ سامرون ۲ نو آخیاب نابوت ته خبره وکړه و ئي ویل
چه خپل تاکستان ماته راکړه چه ما لره دَ سبزو باغ شي
ځکه چه هغه څما دَ کور څنګ ته نژدي دَی او زه به تا ته
دَ هغه په بدل کښ له هغه نه ښه تاکستان درکړم یا که
ستا په سترګو کښ ښه وِي نو زه به دَ هغه بیعه سپین زر
۳ درکړم ۳ نو نابوت آخیاب ته وویل چه ما لره دِ دَ خداوَند
له طرفَ هسي نه وِي چه زه تا ته دَ خپلو پلارونو میراث
۴ درکړم ۴ نو آخیاب خپل کور ته خپه او غمجن ننه وت دَ هغي
خبري دَپاره چه نابوت هغه یزرعیلي وکړه هغه چه ویل ئي
چه زه به تا ته دَ خپل پلارونو میراث در نه کړم او هغه
په خپل کټ څملاست او مخ ئي وګرزاوه او ډوډيِ ئي ونه خوړه
۵ ۵ او ایزبل دَده ښځه ورته راغله ورته و ئي ویل چه دا څه
۶ دِي چه ستا روح خپه دَی او ډوډيِ نه خوري ۶ او هغه دي ته
وویل چه ما نابوت یزرعیلي ته خبره وکړه او ورته مِ وویل چه
خپل تاکستان دِ په سپینو زرو راکړه او که دِ خوشحالي وِي زه
به تا ته دَ هغه په ځاي کښ تاکستان درکړم هغه وویل چه
۷ زه به تا ته خپل تاکستان در نه کړم ۷ نو ایزبل ښځي ئي هغه
ته وویل چه ته اوس په اسرائیل حکومت کوي څه ؟ پورته شه
ډوډيِ وخوره او زړه دِ خوشحاله کړه زه به تا ته دَ نابوت یزرعیلي
۸ تاکستان درکړم ۸ بیا هغي دَ آخیاب په نوم خطونه ولیکل او
دَ هغه په مُهر ئي مُهر کړل او خطونه ئي سپین ږیرو او هغو
امیرانو ته چه په ښهر کښ له نابوت سره اوسیدونکي وُو ولیږل
۹ ۹ او هغي په خطونو کښ ولیکل ویل ئي چه دَ روژي منادي وکړئ
۱۰ او نابوت دَ اُمّت په سر کښ کښینوئِ ۱۰ او دوه کسان له بنِي
بلیعال دَ وړاندِ کښینوئ چه شاهدِي ولي ووايي چه تا په الله او

په بادشاه کفر ویلي دیَ بیا ئې و باسئ او سنګسار ئې کړئ
۱۱ او هغه په مړ شي ۱۱ نو دَ ښهر کسانو هغه سپین ږیرو او
امیرانو چه دَده په ښهر کښ اوسیدل داسې وکړل لکه چه
ایزبل ور واستول لکه چه دَ هغې په خطونو کښ چه دوي ته
۱۲ ئې واستول لیکلي شوي وُو ۱۲ نو هغو دَ روژې منادي وکړه او
۱۳ نابوت ئې دَ اُمت په سر کښ کښیناوه ۱۳ او دوه کسان له بنې
بلیعالو ورغلل او هغه ته مخامخ کښیناستل او هغه بلیعال
سړیو په نابوت بانِد دَ اُمت دَ وړاندِ شاهدي وکړه و ئې ویل
چه نابوت په الله او په بادشاه کفر ویلي دي او هغه ئې له
هغه ښهرَ بهر ویوست او په کاڼو ئې سنګسار کړ او هغه
۱۴ مړ شه ۱۴ او هغو ایزبل ته واستاوه ویل ئې چه نابوت سنګسار
۱۵ کړي شه او مړ شه ۱۵ او چه ایزبل واوریدل چه نابوت
سنګسار کړي شه او مړ شه ایزبل آخیاب ته وویل پورته شه
په میراث واخله تاکستان دَ نابوت یزرعیلي هغه چه ده انکار
وکړ چه تا ته ئې په سپینو زرو درکړي ځکه چه نابوت ژوندي
۱۶ نه دیَ بلکه مړ دیَ ۱۶ او چه آخیاب واوریدل چه نابوت مړ
شه نو آخیاب پورته شه چه دَ نابوت هغه یزرعیلي تاکستان ته
ورکوز شي چه په میراث ئې واخلي
۱۷ ۱۷ او دَ خداوند کلام ایلیاه تشبي ته وشه ویل ئې -
۱۸ ۱۸ پورته شه آخیاب بادشاه دَ اسرائیل و ملاقات ته چه
په سامرون کښ دیَ ورکوز شه ګوره هغه دَ نابوت په تاکستان
۱۹ کښ دیَ چه هلته په میراث اخستلو له ورکوز شوي دیَ ۱۹ او
کلام ورته وکړه ووایه چه یهوه داسې امر کوي چه تا خون
وکړ ځه؟ او میراث دِ هم واخست بیا خبره وکړه ووایه چه
خداوند داسې امر کوي چه په هغه مقام کښ چه سپیو

۲۰ دَ نابوت وینې وڅټلې سپي به ستا وینې هم وڅټي ۲۰ او آخیاب
ایلیاه ته وویل اې دُښمنه تا زه موندلی یم څه ؟ هغه
وویل ته مِ وموندلې ځکه چه تا خپل ځان دَ شرارت دَ
۲۱ کولو دَپاره خرڅ کړ دَ یهوه په سترګو کښې ۲۱ ګوره زه به
په تا بلا راوړم او ستا ورستني به نیست کړم او له آخیاب
به هر یو نر هلک بند کونکی او ارت کونکی به اسرائیل کښې
۲۲ پرېکړم ۲۲ او زه به ستا کور لکه کور دَ یربعام بن نباط کړم
او لکه کور دَ بعشا بن اخیا دَ هغه قهر دَپاره چه زه دِ پر
۲۳ قهرولی یم او چه اسرائیل دِ خطا کار کړي دي ۲۳ او یهوه
دَ ایزبل په باب هم کلام وکړ ویل ئې چه سپي به ایزبل دَ یزرعیل
۲۴ دَ قلعې دیوال څنګه وخوري ۲۴ هغه چه دَ آخیاب په ښهر کښې
ومري سپي به ئې وخوري او هغه چه په پټي کښې ومري دَ آسمان
۲۵ مرغان به ئې وخوري ۲۵ او دَ آخیاب په شان هیڅوک نه وه چه خپل
ځان ئې دَ شرارت کولو دَپاره دَ یهوه په سترګو کښې خرڅ کړ چه
۲۶ ایزبل ښځې ئې ولمڅوه ۲۶ او ډېر نفرتي کار ئې وکړ چه په بتانو پسې لاړ
شه موافق دَ هغو ټولو کارونو چه اموریانو وکړل چه خداوند دَ
۲۷ بنی اسرائیل له مخ وشړل ۲۷ او چه آخیاب دا خبره واورېدله خپلې
جامې ئې څیرې کړلې او ټغري ئې په خپل تن واچوله او روژه ئې ونیوه
۲۸ او په ټغري څملاست او په قرارئ سره ته ۲۸ نو دَ یهوه کلام ایلیاه
۲۹ هغه تشبي ته وشه وئې ویل ۲۹ چه ته وینې چه آخیاب ځما
دَ وړاندې څرنګ ځان ذلیل کوي څه ؟ دې دَپاره چه دې ځما دَ وړاندِ
ځان ذلیل کوي زه به دَده په ورځو کښې هغه بلا رانه وړم بلکه
دَده دَ ځوي په ورځو کښې به هغه بلا دَده په کور باندِ راوړم +

## دوه ویشتم باب

۱ ۱ او دوې درې کاله بې جنګه دَ آرام په مینځ او دَ اسرائیل په مینځ

۲ کښې پاتې شول ۲ او په دريم کال کښې يهوشافاط بادشاه دَ
۳ يهوداه دَ اسرائيل بادشاه ته کوز شه ۳ او دَ اسرائيل
بادشاه خپلو سريونو ته وويل چه تاسې پوهيږئ چه راموت
جلعاد څمونږ دَے او مونږ ئې دَ آرام دَ بادشاه له لاسه له
۴ آخستلو نه چُپ يُو ۴ او هغه يهوشافاط ته وويل چه ته به
له ما سره دَ جنګ دَپاره راموت جلعاد ته لاړ شې څه ؟ او يهوشافاط
دَ اسرائيل بادشاه ته وويل چه لکه ته يې هسې زه يم لکه
چه ستا خلق هسې څما خلق او لکه ستا آسونه هسې څما
۵ آسونه ۵ بيا يهوشافاط دَ اسرائيل بادشاه ته وويل چه ته نن
۶ ورځ دَ خداوند دَ کلام سوال وکړه ۶ او دَ اسرائيل بادشاه په
قدر دَ څلورو سوو نبيان سره جمع کړل او ورته وئې ويل
چه زه به راموت جلعاد دَ جنګ دَپاره وخيژم يا ئې پريږدم او هغو
۷ وويل وخيژه او خاوند به ئې دَ بادشاه لاس ته ورکړي ۷ نو
يهوشافاط وويل چه بل نبي دَ يهوه دلته نشته چه مونږ ور نه
۸ سوال وکړو ۸ نو بادشاه دَ اسرائيل يهوشافاط ته وويل چه بل
يو سړے شته چه مونږ ورته دَ خداوند سوال وکړو ليکن څما
له هغه سره کينه ده څکه چه هغه په ما بنه نبوّت نه کوي
بلکه بد او هغه ميکاياه بن ايملاه دَے نو يهوشافاط وويل چه
۹ بادشاه دِ داسې نه وايي ۹ نو دَ اسرائيل بادشاه يو خصي وباله
۱۰ وئې ويل چه ميکاياه بن ايملاه ما ته زر راوله ۱۰ او دَ اسرائيل
بادشاه او يهوشافاط بادشاه دَ يهوداه هريو په خپل تخت
ناست وه خپلې قباې ئې اغوستلې وې په هوار ځاې کښې دَ
سامرون دَ دروازې په مدخل کښې او ټولو نبيانو دَ دوې دَ وړاندې
۱۱ نبوّت کاوه ۱۱ او صدقياه زوے دَ کنعنه دَ خپل ځان دَپاره ښکرونه
دَ اوسپنې جوړ کړل او وئې ويل چه خداوند داسې وايي چه ته

۱۲ به په دي سره آرامیان په ټکر ووهي څو چه تمام ئې کړي ۱۲ او
ټولو نبیانو هم داسي نبوّت وکړ و ئې ویل چه ته راموت جلعاد
ته وخیژه او کامیاب شه او خداوند به ئې دَ بادشاه په لاس
۱۳ درکړِي ۱۳ او هغه استاذي چه دَ میکایاه دَ بللو دَپاره تللی وه
خبره ئې ورته وکړه ویل ئې گوره چه خبره دَ ټولو نبیانو په یوي
خلي سره بادشاه ته ښیگړه کوِي او ستا خبره دِ دَ هغو دَ هر
۱۴ یوه دَ خبري په شان وِي او ته دَ ښیگړي خبره وکړه ۱۴ نو میکایاه
وویل چه یهوه حي دَي هغه څه چه خداوند ماته وایي
۱۵ زه به خبره پرِ وکړم ۱۵ او بادشاه ته ورغي او بادشاه ورته وویل
اي میکایاه مونږ راموت جلعاد ته دَ جنگ دَپاره لاړ شُو یا ئې
پریږدو نو ده هغه ته وویل وخیژه او کامیاب شه او خداوند به
۱۶ هغه دَ بادشاه په لاس ورکړِي ۱۶ او هغه ته بادشاه وویل چه
زه تاته ترڅو وارو قسم درکړم چه ماته مه وایه بغیر له
۱۷ رښتیاؤ دَ خداوند په نوم سره ۱۷ او هغه وویل چه ما ټول
اسرائیل په غرونو باندِ تار په تار ولید لکه دَ گډورِي چه شپون
نه لرِي او خداوند وویل چه دَ دغو خاوند نشته نو هر یو دِ
۱۸ خپل کور ته په سلامتئ سره وجاروزِي ۱۸ نو دَ اسرائیل بادشاه
یهوشافاط ته وویل چه ما تاته ویلي نه وه څه؟ چه دغه څما
۱۹ دَپارَ دَ ښیگړِي نبوّت نه کوِي بلکه دَ بلا ۱۹ او هغه وویل چه
ته دَ خداوند کلام واوره ما خداوند دَده په تخت ناست ولید
او ټول فوځ دَ آسمانونو ورته ودریدونکي دَده په ښي او دَده
۲۰ په کینړ لورِي ۲۰ او خداوند وویل چه څوک به آخیاب وغلوِي
چه دي وخیژِي او په راموت جلعاد کښ پرېوزِي نو ده وویل
۲۱ هسي او هغه وویل داسي ۲۱ بیا یو روح ووت او دَ خداوند دَ
وړاندِ ودرید و ئې ویل چه زه به ئې وغلوم او هغه ته خداوند

۲۲ وويل په څه سره ۲۲ او هغه وويل زه به ووزم او دَده دَ ټولو
نبيانو په خولو کښ به دَ دروغو روح شم او هغه وويل
۲۳ چه ته به يې وغلوې او و به توانيږې: ځه : او داسې وکړه ۲۳ او
اوس ګوره چه خداوند دَ دروغو روح دَ دغو ټولو ستا دَ نبيانو
په خولو کښ ښبې دئ او خداوند ستا په باب دَ بلا خبره کړې
۲۴ ۲۴ نو صدقياه بن کنعنه ورنژدې شه او ميکاياه يې په وټ
وواهه او وئې ويل چه دَ خداوند روح له کومه را تير شه
۲۵ چه تا ته خبره وکړي ۲۵ او ميکاياه وويل چه ته به په هغه
ورځې کښ ووينې چه ته به په کښ خونې په خونې ننوزې چه ځان
۲۶ پټ کړي ۲۶ او دَ اسرائيل بادشاه وويل چه ميکاياه واخله او
۲۷ آمون سردار دَ ښهر ته او يوآش شاهزاده ته يې ورولې ۲۷ ورته
ووايه چه بادشاه داسې وائي چه دې په زندان کښ واچوئ او تنګه
۲۸ ډوډئ او تنګي اوبه ورخوروئ څو چه زه په سلامتئ راشم ۲۸ او
ميکاياه وويل چه که ته په سلامتئ را وګرزې نو خداوند ځما
په معرفت کلام کړې نه دې او ده وويل چه اې اُمّته تاسو
ټول واورئ

۲۹ ۲۹ نو دَ اسرائيل بادشاه او يهوشافاط دَ يهوداه بادشاه
۳۰ راموت جلعاد ته وختل ۳۰ نو دَ اسرائيل بادشاه يهوشافاط
ته وويل چه زه خپل لباس بدلوم او جنګ ته ننوزم او
ته خپلې جامې واغونده نو دَ اسرائيل بادشاه لباس بدل کړ
۳۱ او جنګ ته ننه وت ۳۱ او دَ آرام بادشاه دَ دوه ديرشو ګاډيو
خپلو سردارانو ته فرمان وکړ وئې ويل چه له کوم ووړې او
لوئې سره جنګ مه کوئ مګر خاص دَ اسرائيل له بادشاه سره
۳۲ ۳۲ او داسې وشول چه دَ ګاډيو سردارانو يهوشافاط وليد
وئې ويل چه اخ دا دئ بادشاه دَ اسرائيل او هغوي په ده

باندِ را وګرزيدل چه ورسره وجنګيږي نو يهوشافاط نعره
وکړه ۳۳ او چه دَ ګاډيو سردارانو وليد چه هغه بادشاه دَ ۳۳
اسرائيل نه دَي نو له ورپسي کيدلو وجاروتل ۳۴ او يو سړي ۳۴
هسي خپله لينده راکښوله او دَ اسرائيل بادشاه ئي دَ زغري
دَ پيوندونو په مينځ کښ وويشت او هغه ګاډيوان ته وويل چه
لاس دِ وګرزوه له لښکر نه مِ وباسه ځکه چه ژوبل شوي يم
۳۵ او په هغه ورځي کښ جنګ سخت وشه او بادشاه په خپل ۳۵
ګاډي کښ دَ آرام په مقابل ودريده او دَ نماښام په وقت مړ
شه او د پرهار ويني ئي دَ ګاډي ومينځ ته وبهيدلي ۳۶ او له ۳۶
لښکر نه دَ نمر دَ ډوبيدلو په وقت زوږ تير شه ويل ئي چه
هر سړي خپل ښهر ته او هر سړي خپلي زمکي ته وګرزي
۳۷ او بادشاه مړ شه او سامرون ته يو وړلي شه او بادشاه ۳۷
ئي په سامرون کښ ښخ کړ ۳۸ او هغه ګاډي ئي دَ سامرون ۳۸
په تالاب کښ ووينځه او سپيَ دَ هغه ويني وڅټلي (او زانياني
هلته ووينځلي) موافق دَ کلام دَ خداوند چه کلام ئي وکړ ۳۹ او ۳۹
نوري خبري دَ آخياب او هر څه چه ده وکړل او هغه دَ هاتي
دَ غاښونو کور چه بنا ئي کړ او هغه ټول ښهرونه چه ده بنا
کړل دوي دَ اسرائيل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښ
ليکلي شوي نه دِي څه ؟ ۴۰ او آخياب له خپلو پلارونو سره ۴۰
څملاست او اخزياه زوي ئي دَ ده په ځاي بادشاه شه
۴۱ او يهوشافاط بن آسا په يهوداه بادشاه شه په څلورم ۴۱
کال کښ دَ آخياب بادشاه داسرائيل ۴۲ يهوشافاط د پينځه دېرشو کالو ۴۲
وه چه بادشاه شه او په اورشليم کښ ئي پينځه ويشت کاله
بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نوم عزوبه بنت شلحي وه ۴۳ او ۴۳
په ټولو لارو دَ آسا دَده دَ پلار کښ لاړ شه له هغي نه لري

نه شه چه هغه چه دَ خداوند په سترګو کښې راست وُو وکړې
تش لوړې لرې کړې شوې نه وې تر اوسه اُمّت ذبحې کولې او
۴۴ په لوړو به ئې خوشبوئې سيځلې ۴۴ او دَ يهوشافاط بادشاه دَ
۴۵ اسرائيل سره ئې صلح وکړه ۴۵ او نورې خبرې دَ يهوشافاط او دَده
جبّارې چه ظاهره ئې کړې او چه ده څرنګ جنګ وکړ هغه خو
دَ يهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامې په کتاب کښې ليکلې نه دِي
۴۶ څه ؟ ۴۶ او هغه باقې کونيان چه دَده دَ پلار آسا په ورځو
۴۷ کښې پاتې شوِې وُو له زمکې ئې نيست کړل ۴۷ او په ادوم کښې
۴۸ بادشاه نه وه او يوه منصب‌دار بادشاهِي کوله ۴۸ او يهوشافاط
دَ ترشيش جهازونه جوړ کړل چه اوفير ته دَ سرو زرو دَپاره
ورشِې ليکن هلته لاړ نه شه ځکه چه جهازونه په عصيون
۴۹ جابر کښې مات شول ۴۹ نو دَ آخياب زوې اخزيا يهوشافاط ته
وويل چه خما مريونه په جهازونو کښې دِ ستا له مريونو سره
۵۰ لاړ شِې او يهوشافاط خوښه نه کړه ۵۰ او يهوشافاط له خپلو
پلرونو سره څملاست او له خپلو پلرونو سره په ښهر دَ داؤد
دَده دَ پلار کښې ښخ کړې شه او دَده په ځاې يهورام دَده زوې
بادشاه شه

۵۱ ۵۱ اخزيا بن آخياب په سامرون کښې په اولسم کال دَ
يهوشافاط بادشـــاه دَ يهوداه په اسرائيل بادشاهِي وکړه او
۵۲ دوه کاله ئې په اسرائيل بادشاهِي وکړه ۵۲ او دَ خداوند په
سترګو کښې ئې شر وکړ او دَ خپل پلار په لارې او دَ خپلې مور
په لارې او دَ يربعام بن نباط په لارې چه په اسرائيل ئې خطا
۵۳ وکړه لاړ شه ۵۳ او دَ بعل عبادت ئې وکړ او سجده ئې ورته
وکړه او خداوند الله دَ اسرائيل ئې په قهر کړ موافق دَ هغو
ټولو چه دَده پلار وکړل *

# دویم کتاب دَ بادشاهانو

## اول باب

۱ ۱ او پس له مرګَ دَ اخاب نه مواب له اسرائیلَ یاغِي شه
۲ ۲ او اخزیا له شبکي دَ هغي بالاخاني نه چه په سامریه کښ يُ وه
ولوئیده او رنځور شه او قاصدان يُ ولیږل ورته يُ وویل چه
لاړ شئ او له بعل زبوب ربَ دَ عقرونه پوښتنه وکړئ چه زه به
۳ له دي رنځ نه روغ شم که نه ۳ نو فرښتي دَ خداوند الیاه تشبي
ته وُو چه پورته شه او دَ سامریي دَ بادشاه دَ قاصدانو مخي ته
ورشه او ورته ووایه چه ولي په اسرائیل کښ الله موندي نشي
۴ څه؟ چه تاسي له بعل زبوب ربَ دَ عقرونه پوښتني دَپاره ځئ ۴ لیکن
خداوند داسي ویلي دِي چه ته به دَ هغه کټ نه چه پرِ ختلي يي
۵ کوز نه شي بلکه په مرګِي به ومري نو الیاه لاړ شه ۵ او هغه
۶ قاصدان ور وجاروتل او ده ورته وویل چه ولي را وجاروتلئ ۶ او
دوي ورته وویل چه یو سړَي څمونږ مخي ته راغي او راته يُ وویل
چه ورشئِ او هغه بادشاه ته چه تاسي يُ را استولي يئ وجاروزئ
او ورته ووایئ چه خداوند داسي ویلي دِي چه ولي په اسرائیل کښ
الله نشته څه؟ چه وادِ ستول چه له بعل زبوب الله دَ عقرونه
پوښتنه وکړي نو له هغه کټ نه چه ته پرِ ختلي يي کوز به نه شي
۷ بلکه په مرګ سره به ومري ۷ او ده هغو ته وویل چه دَ هغه سړي
شکل څرنګ وه چه ستاسي مخي ته در وخوت او دا خبره يُ درته
۸ وویله ۸ او دوي وویل چه هغه ډیر په ویښتو ببر سړي وه او دَ
څرمني کمربند يُ په ملا تړلي وه نو ده وویل چه دغه الیاه تشبي
۹ دَي ۹ نو ده هغه ته دَ پنځوسو سردار له خپلو پنځوسو سره والستاوه

او هغه ور وخوت او کوره هغه دَ يوه غره په سر ناست وه
او هغه ورته وويل چه اي مردِ الله بادشاه وايي راکوز شه
١٠ ١٠ نو الياه ځواب ورکړ او دَ پنځوسو سردار ته ئي وويل چه که
زه مردِ الله يم نو له آسمانه دِ اور راکوز شي او تا او هغه
پنځوس چه درسره دِي و دِ خوري او دَ آسمانه اور راکوز شه
١١ او هغه او دَ هغه پنځوس ئي وخوړل ١١ او بيا ئي بل سردار دَ
پنځوسو دَ خپلو پنځوسو سره ورواستاوه او ځواب ئي ورکړ ورته
و ئي ويل اي مردِ الله بادشاه داسي وايي چه زر راکوز شه -
١٢ ١٢ او الياه ځواب ورکړ ورته و ئي ويل چه که زه مردِ الله يم
نو له آسمانه دِ اور راکوز شي چه تا وخوري او هغه پنځوس
چه ستا دِي او له آسمانه اور دَ الله راکوز شه او هغه ئي
١٣ وخوړ او هغه پنځوس چه ئي وُو ١٣ بيا ئي دريم دَ پنځوسو سردار
دَ خپلو پنځوسو سره ورواستاوه نو هغه دريم دَ پنځوسو سردار
وخوت او راغي او دَ ايلياه دَ وړاندِ په زنګنونو ټيټ شه او ورته
ئي زاري وکړه ورته ئي وويل چه اي مردِ الله ځما ځان او ستا
دَ دغو پنځوسو مريونو ځانونه دِ ستا په سترګو کښ ګران وِي
١٤ ١٤ کوره چه له آسمانه اور راکوز شه او هغه دوه وړاندِني سرداران
دَ پنځوسو ئي دَ دغو دَ پنځوسو سره وخوړل نو اوس دِ ځما ځان
١٥ ستا په سترګو کښ ګران وِي ١٥ نو فرښتي دَ خداوند الياه ته وويل
ورسره کوز شه دَ هغه له مخي نه مه وېرېږه او هغه پورته شه
١٦ او ورسره بادشاه ته کوز شه ١٦ او ورته ئي وويل چه خداوند
هسي ويلي دِي چه دي دَپاره چه تا قاصدان واستول چه له
بعل زبوب رب دَ عقرونه پوښتنه وکړي باري په اسرائيل کښ
الله نشته څه ؟ چه دَ هغه له کلام نه پوښتنه وکړي ليکن له
هغه کټ نه چه ته پري ختلي يي کوز به نه شي بلکه په مرګ

۱۷ سره به ومري ۱۷ او هغه مړ شه موافق دَ کلام دَ خداوند چه
الیاه پرِ خبره وکړه او دَده په ځاي یهورام بادشاه شه په دویم
کال دَ یهورام زوي دَ یهوشافاط بادشاه دَ یهوداه ځکه چه زوي
۱۸ ورلره نه وه ۱۸ او نوري خبري دَ اخزیاه چه و يئ کړلي دَ اسرائیل
دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښ لیکلي نه دِي څه ؟ ÷

# دویم باب

۱ ۱ او داسي وه چه خداوند الیاه په بړبوکئ کښ آسمان ته
۲ خیژاوه نو الیاه او الیشع له جلجال نه لاړل ۲ او ایلیاه الیشع ته
وویل چه ته دلته تم شه ځکه چه خداوند زه بیت ایل ته
استولي یم نو الیشع وویل چه **یهوه حي دَي** او ستا ځان
حي دَي چه زه به دِ پري نه بږدم او دوي بیت ایل ته کوز شول
۳ ۳ او دَ انبیاؤ ځامن چه په بیت ایل کښ وُو الیشع ته ووتل او
ورته يئ وویل چه ته پوهیږي چه هم نن ورځ به خداوند ستا خاوند
ستا د سر له پاسه واخلِي ده وویل هو زه هم پوهیږم تاسي چُپ
۴ شئ ۴ بیا الیاه ورته وویل اي الیشع ته دلته تم شه ځکه چه
خداوند زه اریحا ته استولي یم او هغه وویل چه **یهوه حي دَي**
او ستا ځان حي دَي زه به دِ پري نه بږدم او دوي اریحا ته ورغلل
۵ ۵ او دَ نبیانو ځامن چه په اریحا کښ وُو الیشع ته نژدي شول
او ورته يئ وویل چه ته پوهیږي چه خداوند به ستا خاوند هم
نن ورځ ستا دَ سر له پاسه واخلِي ؟ ده وویل هو زه خبر یم تاسي
۶ چُپ شئ ۶ بیا الیاه ورته وویل چه ته دلته تم شه ځکه چه
خداوند زه اردن ته استولي یم او ده وویل چه **یهوه حي**
**دَي** او ستا ځان حي دَي زه به دِ پري نه بږدم او دواړه روان
۷ شول ۷ او پنځوس سړي له ځامنو دَ نبیانو لاړل او دَدوي دَ وړاندِ

۸ لړي ودريدل او دوي دواړه دَ اردن په غاړې و دريدل ۸ او الياه
خپل څادر واخست و ئې نغښت او اوبه ئې ووهلي او هغه په
دي لوري او په هغه لوري نيمي شوي او دوي دواړه په وچه
۹ پوري شول ۹ او چه دوي پوري وتل نو الياه اليشع ته وويل وغواړه
زه تا له څه وکړم وړاندِ له هغه چه له تا نه واخستلي شم او
۱۰ اليشع وُوِ چه ستا دَ روح نه دِ دوګوني برخه په ما وِي؟ ۱۰ نو هغه
وويل چه تا سخت سوال وکړ نو که ته مِ ووينې چه درنه واخستلي
۱۱ شوم نو تا لرِه به داسي وِي او که نه نو نه به وِي ۱۱ او داسي وشوه
چه دوي په تللو تلل او خبري ئې کولي نو ګوره يو دَ اور ګاډي او
دَ اور آسونو دَدوي په مينځ فرق وکړ او الياه په برېوکۍ کښ آسمان
۱۲ ته وختو ۱۲ او اليشع ليده او نعره ئې وکړه اي څما پلاره اي څما
پلاره دَ اسرائيل ګاډي او دَ هغه سواره او بيا ئې ونه ليده
۱۳ او ده خپلي جامي ونيولي او دوي ئې څيري کړي ۱۳ او دَ الياه څادر
ئې واخست چه ورنه پريوتلي وه او وجاروت او دَ اردن په غاړې
۱۴ ودريده ۱۴ او دَ الياه څادر چه ورنه پريوتلي وه واخست په اوبو
ئې وواهه او وئې ويل چه يهوه الله دَ الياه چرته دَي او چه
اوبه ئې ووهلي نو په دي لوري او په هغه لوري نيمي شوي او
۱۵ اليشع پوري شه ۱۵ او چه زامنو دَ هغو نبيانو چه په اريحا کښ
دَده له وړاندِ وُو وليد نو دوي وويل چه دَ الياه روح په اليشع
قرار شه نو دَده ملاقات له راغلل او ورته ئې سجده وکړه تر
۱۶ زمکي پوري ۱۶ او ورته ئې وويل ګوره که نه ستا له مريونو سره
پنځوس توتناک سړي شته دي نو دوي لاړ شي او ستا خاوند
ولټوي هسي نه وِي چه دَ خداوند روح هغه نيولي او په يوه
دَ غرونو يا په يوي دَ خوړيو کښ ئې غورزولي وِي او ده وويل
۱۷ مه استوئ ۱۷ او چه دوي په ده پخوالَي وکړ څو چه هغه وشرميده

نو و ئې ویل واستوئ او دوي پنځوس سړي واستول او دري
١٨ ورځي ئې ولټاوه او و ئې نه موند ١٨ او چه ده ته را وجاروتل
هرکله چه دئ په اریحا کښې تم وه نو ورته ئې وویل چه ما
تاسو ته ویلي نه وُو چه مه ځئ؟
١٩ ١٩ او دَ هغه ښهر کسان الیشع ته وویل ګوره که نه دَدې
ښهر ځاي ډیر ښه دي لکه چه څښتن خاوند ئې وینې لیکن
٢٠ اوبه ئې ناکاره او زمکه ئې شنډه دَه ٢٠ او ده وویل چه یوه نوې
کټوئ راوړئ او په هغه کښې مالګه کیږدئ او هغو ورته راوړه
٢١ ٢١ او دَې چینې دَ اوبو ته ورغي او هغه مالګه ئې په کښې واچوله
او و ئې ویل چه خداوند داسې وائي چه ما دا اوبه روغې کړې دِي
٢٢ بیا به له دغه ځاي نه نه مرګ وي او نه شنډوالي ٢٢ او هغه
اوبه تر نن ورځي پورې دَ الیشع دَ کلام په موافق چه کلام ئې
٢٣ وکړ روغې شوې دِي ٢٣ او له هغه ځاي نه بیت‌ایل ته وختو
او چه لا دَی په لارې ختو نو ګوره چه ناکاره ځوانان له ښهرَ
ووتل او ټوقې ئې ورپورې وکړې ویل ئې اې ګنجیه وخیژه اې
٢٤ ګنجیه وخیژه ٢٤ او دې په ورستو وګرزیده او نظر ئې وکړ او دَ
خداوند په نوم ئې لعنت پرې وکړ او دوه یږانې له ځنګل نه ووتلې
٢٥ او دوځلویښت هلکان ئې ورنه ودارړل ٢٥ او له هغه نه دَ کرمل
غره ته لاړ او له هغه نه سمرون ته وجاروت ❖

# دریم باب

بادشاهي سرشته

١ ١ او یهورام زوي دَ اخاب په اسرائیل باندِ په سمرون کښې په
اتلسم کال دَ یهوشافاط بادشاه دَ یهوداه او دولس کاله بادشاهي
٢ وکړه ٢ او دَ خداوند په سترګو کښې ئې بدِي وکړه مګر نه داسې
لکه دَده پلار او دَده مور ځکه چه ده دَ بعل ستنې لرې کړلې

۳ هغه چه دَده پلار جوړه کړله ۳ لیکن دَي دَ یربعام بن نباط
په ګناهونو ونښت هغه چه په اسرائیل ئي ګناه وکړه او ورنه
لرِي نه شوه
۴ ۴ او میشع بادشاه دَ مواب دَ ښارویو مالک وه او دَ
اسرائیل بادشاه ته به ئي یو سل زره ورِي او یو سل زره مړوونه
۵ له وریو سره ببنکښي ورکول ۵ او چه آخاب مړ شه دَ مواب
۶ بادشاه دَ اسرائیل له بادشاه نه یاغي شه ۶ او یهورام هغه
بادشاه په دغي ورځي له سمرونه ووت او ټول اسرائیل ئي وشماره
۷ ۷ او لاړ او یهوشافاط بادشاه دَ یهوداه ته ئي واستاوه ویل
ئي چه دَ مواب بادشاه رانه یاغي شه نو ته به له ما سره مواب
ته دَ جنګ دَپاره لاړ شي څه؟ هغه وویل و به خیژم لکه ته
هسي زه ځما خلق لکه ستا خلق او ځما آسونه لکه ستا آسونه
۸ ۸ او هغه ویل چه په کومي لاري به وخیژو او هغه وویل دَ ادوم
۹ دَ بیابان په لاري ۹ نو بادشاه دَ اسرائیل او بادشاه دَ یهوداه
او بادشاه دَ ادوم لاړل او دَ اوو ورځو لار وګرزیدل او اوبه دَ
۱۰ لښکر او دَ چارپایانو دَپاره چه ورپسي وو نه وي ۱۰ نو دَ اسرائیل
بادشاه وویل ارمان دَي چه خداوند دغه دري بادشاهان وبلل
۱۱ چه دَ مواب په لاس کښ ئي ورکړي ۱۱ نو یهوشافاط وُوِ چه دلته
دَ یهوه نبي نشته چه په دغه سره له یهوه نه پوښتنه وکړو نو
یوه له نوکرانو دَ شاهِ اسرائیل نه ځواب وکړ و ئي ویل چه دلته
الیشع بن شافاط شته هغه چه دَ ایلیاه په لاسونو ئي اوبه
۱۲ توبولي ۱۲ نو یهوشافاط وویل چه هغه ځنخه کلام دَ یهوه شته
نو بادشاه دَ اسرائیل او یهوشافاط او بادشاه دَ ادوم ورکوز
۱۳ شول ۱۳ او الیشع بادشاه دَ اسرائیل ته وویل چه ځما له تا
سره څه دِي ته دَ خپل پلار نبیانو او دَ خپلي مور نبیانو ته

وردرومه او دَ اسرائیل بادشاه ورته وویل چه نه څکه چه
خداوند دغه دري بادشاهان وبلل چه دَ مواب په لاس ئي ورکړي
۱۴ ۱۴ نو الیشع وویل چه یهوه دَ لښکرو حي دَي چه زه ئي دَ وړاندِ
ولاړیم چه که زه دَ شاهِ یهوداه یهوشافاط دَ مخ پورته کونکي نه وَي
۱۵ نو تاته به م کتلي نه وُو او نه به م لیدلي وي ۱۵ او اوس ما ته
یو تار ساز وهونکي راولئ او داسي وشه چه تار ساز وهونکي
۱۶ تارونه ووهل نو دَ یهوه لاس په هغه وه ۱۶ او هغه وویل چه
۱۷ یهوه داسي وايي چه دغه خوړي تالاوونه کړئ ۱۷ څکه چه
یهوه داسي وايي چه نه به تاسي باد وویني او نه به باران وویني
او دا خوړه به له اوبو ډکه شي او وبه څښئ تاسي او ستاسي
۱۸ څاروي او ستاسي چارپایان هم ۱۸ او دا دَ خداوند په سترګو کښ
۱۹ سپکه خبره ده او موآبي به ستاسي په لاس ورکړي ۱۹ او تاسي
به هر یو محکم ښهر او هر یو غوره ښهر ووهئ او هره یوه ښه
ونه به پریکړئ او ټولي چیني دَ اوبو به بندي وتړئ او هره یوه
۲۰ ښه ټکړه (دَ پټِي) به په کاڼو خرابه کړئ ۲۰ او په صباح کښ دَ
هدیي خېژولو په وقت داسي وشول ګوره چه د ادوم له لاري
۲۱ اوبه راتلي او زمکه له اوبو ډکه شوه ۲۱ او چه ټولو موابیانو
واوریدل چه بادشاهان دَدوي جنګ ته راوختل نو هغه ټول
چه وسلي ئي تړلي او نور ئي هم په پوکار سره جمع کړل او په
۲۲ سرحد ودریدل ۲۲ او صبا وقتي پورته شول او نمر په اوبوځلید
او موآبیانو دَ هغو په برابر اوبو داسي سري ولیدلي لکه وینې-
۲۳ ۲۳ نو دوي وویل چه دا وینې دِي بادشاهان سره په خرابولو خراب
شول او سرِي خپل ملګرِي ته به وُوِ اي موآبیانو اوس شوک
۲۴ ته ۲۴ او دوي دَ اسرائیل لښکرګاه ته ورغلل او اسرائیل پورته
شه او موآبیان ئي ووهل او هغوي دَدوي له وړاندِ وتښتیدل

۲۵ او په زمکه کښې ورغلل او موابیان ئې ووهل ۲۵ او ښهرونه ئې
ونړول او هر یوه به هر ښه دَ پټي ټوکري ته کاڼي غورزاوه
او ډک ئې کړل او ټولي چینې دَ اوبو ئې بند وتړلي او ټولي ښې ونې
ئې پریکړي تر هغه چه دوي په قیرِحارس کاڼي پریښودل لیکن
۲۶ مجوغني ویشتونکو ګېر کړ او و ئې واهه ۲۶ او چه دَ مواب بادشاه ولید
چه جنګ راباندِ سخت شه نو له ځان سره ئې اوه سوه تُوري وکښلي
سړي واخستل چه دوي دَ ادوم بادشاه ته پره ورخیري کړي او
۲۷ دوي و نه توانیدل ۲۷ او ده هغه مشر زوي خپل چه دَده په
ځاي به بادشاه کېده واخست او هغه دَ سیزلو قرباني په دیوال
وخیژاوه او په اسرائیل لوي قهر وه او دوي ورنه وګرزیدل
او خپلي زمکي ته وجاروتل ❊

# څلورم باب

۱ آ او دَ نبیانو دَ زامنو له ښځو نه یوي ښځي الیشع ته ناره وکړه
ویل ئې چه ستا سړي خما میړه مړ شه او ته پوهیږي چه ستا
سړي نحو له خداوند نه وېریده او اوس دَده پورورِي راغلي دِي
۲ چه خما دواړه زامن خپل ځان لره واخلي او مریونه ئې کړي ۲ او
هغه ته الیشع وویل چه زه ستا دَپاره څه وکړم راښکاره کړه
په کور کښې درځنه څه شته ؟ هغې وویل چه ستا وینځه څخه په
۳ کور کښې نور هیڅ نشته بِي له یوي کوئِ دَ تیلو ۳ نو ده وویل
چه لاړه شه او دَ باندِ له ټولو ګاونډیانو دِ تش لوښي ځان ته
۴ وغواړه او لږ دِ نه وِي ۴ بیا ننووزه او په خپل ځان او په خپلو
ځامنو پسي دروازه بنده کړه او په دغو ټولو لوښو کښې ئې توي
۵ کړه او چه ډک شِي نو هغه یوه خوا کوئ ۵ او دا ورنه لاړه او په
خپل ځان او په خپلو زامنو پسي ئې دروازه بنده کړه او دوي

۶ به لوښي ورنژدي کړل او دي به په کښې توېول ۶ اوچه لوښي به
ډک شه نو زوي ته به ئې ويل چه بل لوښي را نژدي کړه او هغه
۷ ورته وويل چه اوس بل نشته او تيل بس شول ۷ او دا ورغله
او هغه مردِ الله ته ئې خرگند کړ او هغه ورته وويل لاړه شه
هغه تيل خرڅ کړ او پور دِ ادا کړه اوچه پاتي شي په هغو ته
او ستا زامن گذران کوئ
۸ ۸ او په يوي ورځي کښې داسي وشول چه اليشع شونم ته
پوري شه او هلته يوه لويه ښځه وه او په دي ئې زور کاوه چه
۹ ډوډئ وخوري ۹ او داسي وشوه چه هر يو وار چه دي به پوري
کيده هلته به وگرزيده چه ډوډئ وخوري او هغي خپل ميړه
ته ووِ گوره که نه چه زه وپوهيږم چه دغه مردِ الله دي هغه
۱۰ مقدّس چه مدام راباندِ تيريږي ۱۰ نو مونږ دي په هغه وړوکي
ديوال باندِ يوه بالاخانه جوړه کړو او هلته به يو کټ کيږدو او
ميز او کرسئ او ډيوټ او څوچه راباندِ راځي هلته به وگرزي
۱۱ ۱۱ او په يوي ورځي کښې داسي وشول چه دي هلته ورغي او بالاخاني
۱۲ ته وگرزيده او په کښې څملاست ۱۲ اوده جيحزي مرېي خپل ته وويل
چه دغه شونميتَ را وبوله او هغه وبلله او دا ئې دَ وړاندِ ودريده
۱۳ ۱۳ او ده هغه ته وويل چه ته دي ته ووايه که نه گوره چه تا څومره
دَپاره په دي ټولي پروا سره پروا وکړه تا لره څه وکړم باري ستا په
باب بادشاه يا دَ لښکر سردار ته خبره وکړي شي او دي وويل
۱۴ زه خو دَ خپل قوم په منځ کښې اوسم ۱۴ نو دوي ويل چه بيا دَ
دغي دَپاره څه کول بايده دِي او جيحزي وويل چه په رښتيا دا
۱۵ زوي نه لري او سړي ئې زوړ دئ ۱۵ نو ده وويل را وئې بوله او
۱۶ دغه ئې را وبلله او دا په مدخل کښې ودريدله ۱۶ او هغه وويل
چه په دي مودي دَ ژوندانه دَ زماني په موافق به ته زوي برکړندي

کړي دي ووېل نه څما خاوندَ مردِ الله ته خپلې وينځې ته دروغ
۱۷ مه وايه ۱۷ او هغه ښځه حامله شوه او زوي يې وزېږاوه په
دغې مودې کښ دَ ژوندانه دَ زماني په موافق لکه چه اليشع
۱۸ ورته ووېل ۱۸ او هغه هلک لوی شه او په يوې ورځې کښ داسې
۱۹ وشوه چه خپل پلار ته ورغې لوګرو ته ۱۹ او خپل پلار ته يې
ووېل څما سر څما سر او هغه يو هلک ته ووېل چه خپلې مور
۲۰ ته يې وروړه ۲۰ او هغه يووړ او دَ ده مور ته يې بوت او هغه
۲۱ دَ دې په زنګونو تر غرمې پورې کښيناست او مړ شه ۲۱ نو دا
وختله او دَ مردِ الله په کټ يې څملاوه او دروازه يې ورباندې
۲۲ بنده کړه ووتله ۲۲ او دې خپل سړي ته ناره وکړه ووېل يې چه
ما ته يو له هلکانو او يوه له خرو راواستوه چه زه مردِ الله ته
۲۳ وزغلم او را وګرځم ۲۳ او هغه ورته ووېل چه ته نن ولې ورځې
۲۴ نه نوې مياشت نه سبّت دَی دې ووېل سلامت دِ وي ۲۴ او په
خره يې زين کښېښود او هلک ته يې ووېل چه شړه او روان يې
کړه او په سوارۍ کښ څما دَ پاره يې مه بندوه څوچه زه درته ونه
۲۵ وايم ۲۵ او دا تلله څوچه مردِ الله ته دَ کرمل غره ته ورغله او
چه مردِ الله له لرې نه دغه وليده نو جيحزي خوان خپل ته يې
۲۶ ووېل ګوره دغه شونمية دَه ۲۶ اوس يې ملاقات ته ورِدو کړه
او ورته ووايه ته سلامته يې ستا مېړه سلامت دَی ستا
۲۷ زوي سلامت دَی څه ؟ او دې ووېل چه سلامت ۲۷ او چه دا
دَ مردِ الله په غره کښ ورغله نو دَ هغه پښې يې ونيوې نو
جيحزي ورِورانږدې شه چه دکه ورکړي او مردِ الله وُوِ پرېږدي يې زړه
څکه چه دا تلخخانه دَه او خداوند را نه پټه کړه او ما ته يې څرګنده
۲۸ نه کړه ۲۸ او دې ووېل چه باري ما له خپل خاوندَ زوي طلب کړي
۲۹ وه څه ؟ ومې ويل چه ما مه غولوه ۲۹ او ده جيحزي ته ووېل

چه ملا وتړه او ځما همسا په لاس واخله او درومه او که
سړي په لاري درپېښ شي نو ورته سلام مه کوه او که سړي
درته سلام وکړي ځواب مه ورکوه او ځما همسا دَ هغه هلک
په مخ کېږده ٣٠ او دَ هغه هلک مور وويل چه هغه خداوند ٣٠
حَيّ دَی او ځان ستا حَي دَی چه زه به دِ پرې نه ږدم او
دَی پورته شه او په هغې پسې تُه ٣١ او جيحزي دَدوي دَ ٣١
وړاندِ تېر شه او هغه همسا ئي دَ هلک په مخ کېښووه ليکن
نه آوازوه نه بيدارِي او هغه دَدوي مخې ته وجاروت او ور
خرګند ئي کړل او ويل ئي چه هغه هلک وېښ نه شه
٣٢ او اليشع کورته ورغې او ګوره چه هغه هلک مړ دَی ٣٢
او دَده په کټ ملاست دَی ٣٣ او دَی ورننه وت او په خپل ځان ٣٣
پسې ئي دواړه دروازي بندي کړي او خداوند ته ئي دُعا وکړه ٣٤ بيا ٣٤
وخوت او په هلک باندِ ځملاست او دَ هغه په خولي باندِ ئي خپله
خوله کېښوه او خپلي سترګي ئي دَ هغه په سترګو باندِ او خپل ورغوي
ئي دَ هغه په ورغويو باندِ او ورباندِ پرمخ پرېوت او دَ هلک صورت
تود شه ٣٥ بيا ستون شه او په کور کښ دي لورِي هغه لورِي ته ٣٥
ئي تلل کاول او وخوت ورباندِ پرمخ پرېوت او هغه هلک اوه واره
وپرچيده بيا هغه هلک خپلي سترګي پرانستلي ٣٦ او ده جيحزي وباله ٣٦
ويل ئي دغه شونميّة راوبوله او دا ئي وبلله او چه ورننوتله هغه
ورته وويل خپل زوی دِ واخله ٣٧ او دا ورغله او په پښو ئي پرېوتله ٣٧
او زمکي ته ئي سجده وکړه او زوی خپل ئي واخست او ووتله
٣٨ او اليشع جلجال ته وجاروت او په دغي زمکي کښ لوږه ٣٨
وه او دَ نبيانو زامن دَده دَ وړاندِ ناست وُو او ده خپل هلک ته
ووِ چه لويه کټوئ کېږده او دَ نبيانو دَ زامنو دَپاره ځه آش پوخ
کړه ٣٩ او يو بېټِي ته ووت چه ځه سبزِي وشوکوي او دَ ورشو کور ٣٩

بې وسوند او بيابانې مرغوني يې ورنه ډک شادر وشوکولې او راغي
او دغه يې دَ آش په کټوۍ کښې ټخې کړلې ولې چه دوي نه پېژاندلې
۴۰ ۴۰ او دَ کسانو دَپاره يې توي کړلې چه و يې خوري او داسي وشوه
چه دوي له هغه آشَ خوړل ناري يې کړي وېل يې اي سړدِ الله په
۴۱ کټوۍ کښې مرګ دَي او دوي نه توانيدل چه و يې خوري ۴۱ او ده
ووېل نو اوړه راوړئ او ده په کټوۍِ کښې واچول و يې وېل چه
خلقو ته يې توي کړئ. او هغو وخوړل او په کټوۍ کښې هيڅ بنده
۴۲ خبره نه وه ۴۲ او له بعل شاليشاه يو سړي راغي او سړدِ الله ته يې
راوړې دَ ورېښو وريشو شل ټيکلئ او سَتوان په خپلې شتې کښې
۴۳ راوړل او و يې وېل چه اُمت ته ورکړه او و به يې خوري ۴۳ او ده
خادم ورته ووېل دا دَ سلو سړو مخې ته ورکړم څه؟ او ده وُوِ
چه خلقو ته يې ورکړه چه و يې خوري ځکه چه خداوند داسي وېلې
۴۴ دِي چه دوي به يې خوري او ورنه باقِي به پاتې شي ۴۴ او دَ هغو
مخې ته يې ورکړل او هغو وخوړل او ورنه باقِي هم پاتې شول
موافق دَ کلام دَ خداوند ٭

## پنځم باب

۱ ۱ او نعمان سردار دَ لښکر دَ ارام دَ بادشاه دَده دَ خاوند په
حضور لوي سړَي او رويدار وه ځکه چه په هغه سره خداوند ارام
ته خلاصون ورکړ او دغه جبّار دَ قوّت او پيس وهلي سړي وه
۲ ۲ او آراميان په داړو ووتل او دَ اسرائيل له زمکي يې يوه ووکې
جنئي په بند راوستله او هغه دَ نعمان دَ ښځې دَ وړاندِ وه -
۳ ۳ او دغي خپلې ميرمني ته وُوِ کاشکې چه زما خاوند دَ هغه
نبي دَ وړاندِ وي چه په سمرون کښې دَي ځکه چه هغه به ده ته
۴ له پيسَ شفا ورکړي وه ۴ او يو ورغي او دَ هغې خاوند ته يې څرګند

کړ ويل ئي چه جنئ چه دَ اسرائيل دَ زمکي ده داسي او داسي
٥ کلام کوي ٥ او دَ آرام بادشاه وويل راشه چه ځو او زه به دَ
اسرائيل بادشاه ته خط واستوم او هغه لاړ او په خپل لاس کښ
ئي لس قنطاره دَ سپينو زرو او شپږ زره دَ سرو زرو او لس
٦ جوړي دَ جامو ئي واخستلي ٦ او خط ئي دَ اسرائيل بادشاه ته وروړ
په دي ويلو سره اوس دَدي خط په در رسيدلو سره گوره ما تا ته
نعمان مريي خپل درواستاوه چه ته ده له دَده له پيس نه شفا ورکړې
٧ ٧ او داسي وشول چه دَ اسرائيل بادشاه خط ولوست نو خپلي جامي
ئي وشلولي او وئي ويل چه زه الله يم څه؟ چه مړ کوم او ژوندي
کوم چه دا ئي رااستولي دَي چه زه يو سړي له دَ هغه له پيس نه
شفا ورکړم نو پوه شئ او نظر کوئ چه هغه له ما نه مقابله غواړي
٨ ٨ او داسي وشوه چه اليشع مردِ الله واوريدل چه دَ اسرائيل
بادشاه جامي وشلولي نو بادشاه ته ئي واستاوه ويل ئي چه ولي
دِ جامي خپلي وشلولي؟ هغه دِ اوس ما ته راشي چه پوه شي چه
٩ په اسرائيل کښ نبي شته دَي ٩ او نعمان له خپلو اسونو او گاډيو
١٠ سره ورغي او دَ اليشع په مدخل ودريده ١٠ او اليشع هغه ته
استازي واستاوه ويل ئي لاړ شه او په اردن کښ اوه واره
١١ ولمبيږه نو به دِ غوښي دروجاروزي او پاک به شي ١١ او نعمان
په غصّه شه او لاړ شه وئي ويل گورئ ما ويل چه دَي به په
وتلو سره راووزي او وبه دريږي او دَ يهوه الله خپل په نوم سره
په ناره وکړي او په هغه ځاي به لاس وخندوي او له هغه پيس
١٢ به شفا راکړي ١٢ ابانه او فرفر دَ دمشق ولي له ټولو اوبو دَ اسرائيل
ښي نه دي څه؟ زه په هغو کښ لمبيدلي نه شم چه پاک شم څه؟
١٣ نو وگرزيد او په غصّي سره تَه ١٣ او دَده سريونه ورنژدي شول او
ورته ئي خبره وکړه ويل ئي اي څښتن پلاره که چري تا ته هغه نبي

دَ لوي کار کلام کړي وي نو هغه به دي کړي نه وه څه؟ نو لا
۱۴ څومره زياته چه درته ئي امر کوي و لمبيږه او پاک شه ۱۴ او دي
کوز شه او په اردن کښې اوه واره ډوب شه موافق دَ کلام دَ
مردِ الله او دَده غوښي دَ وړوکِي هلک دَ غوښي په شان وجاروتي
۱۵ او پاک شه ۱۵ او دَي او ټول لښکر ئي ومردِ الله ته ورغي او دَ
وړاندِ ئي و دريده و ئي ويل ګوره زه اوس پوه شوم چه په ټولي
زمکي کښې الله نشته مګر په اسرائيل کښې او اوس دَ خپل بنده
۱۶ برکت واخله که نه ۱۶ او ده وويل چه يهوه حَيّ دَي چه زه
ئي دَ وړاندِ ولاړ يم وا به ئي نه خلم او هغه په ده تاکيد وکړ
۱۷ چه وائي خلي مګر ده انکار وکړ ۱۷ او نعمان وويل چه ستا مريي
ته دِ بار دَ خاوري دَ دوه کچرو ورکړي نه شي څه؟ ځکه چه ستا مريي به
بيا نه دَ سيزلو قرباني او نه ذبيحه بل الله ته په عمل باندِ راوړي
۱۸ بلکه خداوند ته ۱۸ له دي خبري دِ خداوند ستا بنده معاف کړي
هغه وقت چه زما خاوند بيت رمون ته ورځي چه هلته سجده وکړي
او دي زما په لاس تکيه وکړي نو زه به په بيت رمون کښې سجده
۱۹ وکړم نو خداوند دِ په دي خبري ستا مريي معاف کړي ۱۹ او ده ورته
وويل چه په سلامتي سره ورځه او دي ور نه څه فاصله دَ
۲۰ زمکي لاړ شه ۲۰ نو جيحزي ځوان دَ مردِ الله وويل ګوره زما خاوند
دَ نعمان ارامي نه ممانعت وکړ چه دَده له لاس نه هغه چه
راوړل وانه خستل لیکن يهوه حَيّ دَي چه زه به ورپسي دو
۲۱ کړم او څه شي به ورنه واخلم ۲۱ او جيحزي په نعمان پسي ورغي
او چه نعمان هغه وليد چه ورپسي زغلي نو له ګادي نه دَ هغه
۲۲ ملاقات ته ورکوز شه او ويل ئي سلامتي دَه ۲۲ او هغه ويل
سلامتي دَه خاوند مِ زه را واستولم وايي ګوره په دي وقت دوه
ځوانان له نبيانو دَ افرائيم له غره نه ماته راغلي دِي يو قنطار

۲۳ سپين زر او دوه بدلي جامي ورکړه که نه ۲۳ او نعمان وويل
خوشحال اوسه او دوه قنطاره واخله او په ده ئي تاکيد وکړ او دوه
قنطاره سپين زر ئي په کڅوړو کښ سره دَ دووه بدلو جـامو
۲۴ او خپلو دوه ځوانانو ته ئي ورکړي او دَ هغه دَ وړاندِ ئي وړوړي ۲۴ او
چه غونډئ ته ورسيده نو هغه ئي دَ دوي له لاسونو واخستلي
او په کور کښ ئي وسپارلي او هغه کسان ئي روان کړل او لاړل
۲۵ ۲۵ او دي ورغي او دَ خپل خاوند دَ وړاندِ ودريده او اليشع ورته
وويل اي جيحزي له کومه راغلي او هغه وويل چه ستا مريي په دي
۲۶ او په هغه لوري تلي نه دي ۲۶ او هغه ورته وويل چه زما زړه
۱ درسره تلي نه وه څه؟ هغه وقت چه هغه سړي له خپلي کاډئ ستا
ملاقات ته دروجاروت؟ دا دَ روپيو اخستلو او دَ جامو اخستلو
او دَ زيتون او دَ تاکستانونو او دَ ګډو او دَ غواګانو او دَ مريونو
۲۷ او دَ وينځو وقت دي څه؟ ۲۷ نو دَ نعمان پيس دِ په تا ونښتلي شي او ستا په
اولاد تر ابدَ پوري او دي دَ هغه له وړاندِ پيسي لکه واوره ووت ✣

# شپږم باب

۱ آ او دَ نبيانو زامنو اليشع ته وويل ګوره که نه راځئ چه مونږ
۲ په کښ ستا دَ وړاندِ اوسو راباندِ تنګ دي ۲ مونږ دِ اردن ته لاړ
شو که نه او له هغه ځاي دِ هر سړي يو لرګي واخلو او هلته
دِ دَ ځانونو دَپاره ځاي جوړ کړو چه هلته ارام کوو ده ورته وويل
۳ لاړ شئ ۳ او يوه ورته وويل مهرباني وکړه که نه او ته هم له
۴ خپلو مريونو سره لاړ شه او ده وويل چه زه به لاړ شم ۴ او
۵ ورسره لاړ شه او چه اردن ته ورسيدل لرګي ئي پريکړل ۵ او چه
يوه بښن پريکاوه هغه اوسپنه په اوبو کښ ولويده او ناره ئي
۶ وکړه وويل ئي هاي اي خاونده دا مِ غوښتلي وه ۶ او هغه مردِ الله

وُوِ چرته ولویده او دغه ځاي ورښکاره کړ او دغه یو سوټیَ
پریکړ او هلته يې واچاوه او هغه اوسپنه په لانبو راوختله
۷ ۷ او ورته يې وویل چه ځان لره يې راواخله او هغه لاس اوږد کړ
۸ او وا يې خستله ۸ او دَ ارام بادشاه به له اسرائیل سره جنګیده
او ده له خپلو مریونو سره صلاح وکړه ویل يې چه په فلاني فلاني
۹ ځاي کښ به ځما لښکرګاه وِي ۹ نو مردِ الله دَ اسرائیل بادشاه ته
(خبر) واستوه ویل يې چه ته دَ هغه ځاي له تیریدلو نه ساتنه
۱۰ وکړه ځکه چه آرامیان هلته کوزیږي ۱۰ نو دَ اسرائیل بادشاه هغه
ځاي ته چه دَ هغه په باب مردِ الله ورته امر وکړ او ورته يې
آګاه کاوه واستاوه او هلته يې ځان وساته نه یو وار نه دوه
۱۱ واره ۱۱ نو دَ ارام دَ بادشاه زړه په دي خبري پریشان شه او خپل
مریونه يې وبلل او ورته يې وویل چه تاسي ما ته ځرګند کړئ چه له
۱۲ مونږ نه دَ اسرائیل بادشاه لره څوک دَيْ؟ ۱۲ او دَ ده له مریونو
نه یوه وُوِ دا نه دَه اي خاونده بادشاهَ لیکن هغه الیشع نبي چه په
اسرائیل کښ دَيْ بادشاه دَ اسرائیل ته په هغو کارونو خبروِي چه ته
۱۳ يې په خپلي خلوتخاني کښ خبري کوِي ۱۳ او ده وویل لاړ شئ وګورئ
هغه چرته دَي چه زه ور واستوم و يې نیسم نو دي يې ځرګنداوه
۱۴ ورته يې وُوِ ګوره چه په دوتان کښ دَي ۱۴ او ده هلته آسونه
او ګاډِي او درونډ لښکر واستوه او دوي دَ شپي ورغلل او
۱۵ هغه ښهر يې ګیر کړ ۱۵ او چه خادم دَ مردِ الله صبا وقتي پورته
شه او ووت نو ګوره چه لښکر په ښهر ځرخیدلي دَيْ هم آسونه
هم ګاډِي او دَده ځوان ورته وُوِ هاي اي ځما خاونده څه به
۱۶ وکړو ۱۶ او ده وُوِ مه ویریږه ځکه چه هغه چه له مونږ سره دِي
۱۷ له هغو ډیر دِي چه له دوي سره دِي ۱۷ او الیشع دُعا وکړه و يې
ویل اي خاونده دَده سترګي پرانزه چه ووینی نو خداوند دَ هغه

ځوان سترګي پرانتلي اوو ئي کتل او ګوره چه هغه غر دَ اور
١٨ له آسونو او له ګاډيو ډک دئ دَ اليشع په ګِرداګِرد ١٨ او چه دوی
وربانِدِ کوزيدل نو اليشع خداوند ته دُعا وکړه او و ئي ويل چه
دغهِ قومونه په ړوندوالي ووهه او هغوي ئي دَ اليشع دَ کلام په
١٩ موافق ووهل ١٩ نو اليشع دوي ته وويل چه دا هغه لار نه ده او
نه دا هغه ښهر دئ په ما پسي ولاړ شئ او زه به مو هغه سړي
٢٠ ته بوزم چه تاسي ئي لټوئ او دوي ئي سامريي ته بوتلل ٢٠ او
داسي وشول چه دوي سامريي ته ننوتل نو اليشع وويل اي
خداونده دَ دغو سترګي پرانزه او دوي به ويني نو خداوند دَ دوي
سترګي پرانتلي او چه و ئي کتل ګوره دوي دَ سامريي په مينځ کښ
٢١ دِي ٢١ او دَ اسرائيل بادشاه چه و ئي ليدل نو اليشع ته ئي
٢٢ وويل و ئي وهم و ئي وهم اي ځما پلاره ٢٢ او هغه وويل مه ئي
وهه ته به هغه ووهي چه تا په خپلي توري او په خپلي ليندي
بنديوان کړي دِي څه؟ دَ دوي دَ وړاندِ ډوډئ او اوبه کيږده چه
٢٣ دوي وخوري او وڅښي او خپل خاوند ته لاړ شي ٢٣ او هغو
ته ئي لويه ميلمستيا جوړه کړه او و ئي خوړل او و ئي څښل او
رخصت ئي کړل او خپل خاوند ته لاړل او بيا ئي زيات نه کړل چه
داړي دَ ارام دَ اسرائيل زمکي ته ووزي
٢٤ ٢٤ او پس له دي داسي وو چه بنهدد دَ ارام بادشاه ټول
٢٥ لښکر خپل جمع کړ او وخوت او سامريه ئي ګيره کړه ٢٥ او
په سامريه لويه لوږه وه او دوي هغه ګيره کړه څوچه يو سر
دَ خره په اتيا روپئ ولګيده او دَ کوترو دَ ريخ څلورمه دَ قاب
٢٦ په پنځو روپيو ٢٦ او داسي وشوه چه دَ اسرائيل (بادشاه) په ديوال کښ
تيريدونکئ وه نو يوي ښځي ورته ناري کړي و ئي ويل چه اي
٢٧ خاونده بادشاه خلاصه مِ کړه ٢٧ او هغه ورته وويل چه

خداوند دِ نه خلاصه کِوي زه به دِ له کومه خلاصه کړمِ له
۲۸ درمنده یا له چرخشت نه ۲۸ او بادشاه ورته وویل چه څه دِ
شوي دي او دغي وویل چه دي ښځي راته وویل چه زوي دِ
۲۹ راوړه چه نن يې وخورو او بیا به صبا څما زوي وخورو ۲۹ نو ما
خپل زوي پوخ کړ او ومو خوړ او بله ورځ مِ دي ته وویل
۳۰ راکړه زوي سنا چه و يې خورو او دي خپل زوي پټ کړ ۳۰ او
چه بادشاه دَ هغې ښځي خبره واوریده نو خپلي جامي يې څیري
کړي او په دیوال باندِ تیریدونکي نو خلقو ورته وکتل او کوره
۳۱ چه دننه په تن يې شیړيِ وه ۳۱ او ده وویل چه الله دِ داسي
راسره وکړي او ورنه دِ زیات وکړي چه که نن ورځ سر دَ الیشع
۳۲ بن شافاط ورباندِ ودریږي ۳۲ او الیشع په خپل کور کښ
ناست وه او سپین ږیري ورځنه ناست وو او ده له خپل حضوړ
نه سړي ورواستاوه او دَ استاځي له ورتلو وړاندِ هغه
سپین ږیریو ته وویل چه تاسي وینئ چه دغه دَ قتل کونکي
زوي را استولي دي چه سر م پري کړي گورئِ چه استاځي راځي
دروازه بنده کړئ او دروازي څخه يې په منډو دریئِ دَ دغه په
۳۳ ورستو دَده دَ خاوند دَ پښو آواز نشته څه ؟ ۳۳ او چه ده تر
اوسه خبري کولي گوره چه استازي ورته راغي او ده وویل گورئ
دا بلا دَ خداوند له لوري ده ولي له خداوند نه تر اوسه انتظار وکړم *

# اوم باب

۱ ۱ نو الیشع وُوِ چه دَ خداوند کلام واورئ خداوند داسي وایي
چه لکه دا وقت به صبا به دَ سامریّه په دروازي کښ یو اوړي
دَ میدي په یوه شاقل او دوه اوړي دَ اوربشو په یوه شاقل
۲ وِي ۲ او یو بهادر چه بادشاه به دَ هغه په لاس تکیه کوله

مرد الله ته يې ځواب ورکړ و يې ويل کوره که خداوند په آسمانونو
کښې کړکۍ جوړې کړي نو دا خبره به وشي او ده وويل ته به يې
۳ په خپلو سترګو ووينې ليکن ورنه به و نه خورې ۳ او څلور
کسان د ښهر مدخل څخه وو پيسان او دوي و ويل سړي
خپل ملګري ته چه مونږ ولې دلته ناست يو څو چه ومرو
۴ که مونږ ووايو چه ښهر ته به ننوزو په ښهر کښې لوږه ده
او هلته به ومرو او چه دلته ناست يو هم مرو نو اوس راځئ
چه د ارامیانو ډيرې ته پريوزو نو که يې ژوندي پريښودلو نو
۵ ژوندي پاتې شو او که مو ووژني نو مړه به شو ۵ نو دوي
نماز خفتن پورته شول چه د ارامیانو ډيرې ته ورشي نو ورسيئ
۶ ډيرې د ارامیانو ته ورغلل او کوره هلته سړی نشته ۶ ځکه چه
خداوند د ارامیانو لښکر ته آواز د ګاډيو او آواز د آسونو
بلکه د لوي لښکر آواز واوراوه نو دوي وويل سړي خپل ورور
ته کوره چه د اسرائيل بادشاه څمونږ په خلاف د حتيانو بادشاهان
او د مصر بادشاهان په کرايه اخستلي دي چه په مونږ باندي
۷ راشي ۷ او پورته شول او په نماز خفتن کښې وتښتيدل او
خپلې خيمې او خپل آسونه او خپل خرونه او ډيره لکه چه وه
۸ هسي يې پريښودله او د خپلو ځانونو د پاره وتښتيدل ۸ او دغه
پيسان ورغلل او يوې خيمې ته ننه وتل او و يې خوړل او و يې
څښل او سپين او سره زر او جامې يې ورنه يووړل او لاړل
او يو ځاي يې پټ کړل بيا وجاروتل او بلې خيمې ته ننوتل او ورنه
۹ يې يووړل او پټ يې کړل ۹ او و يې ويل سړي خپل ملګري ته چه
مونږ ښه نه کوو دا خو د زيرې ورځ ده او مونږ پټه خوله يو
او که د صباح تر رڼا پوري صبر وکړو بدي به مو و مومي اوس
۱۰ راشئ چه لاړ شو او د بادشاه کور ته خبر کړو ۱۰ او دوي

ورغلل دَ ښهر دروان ئې وباله او ورتهٔ خرګند ئې کړه ويل ئې چه
مونږ دَ ارامیانو و ډيري ته ورغلو او هلته سړي نه وه او نه دَ
١١ بني آدم آوازوه مګر آسونه تړلي او خيمې لکه چه وې ١١ او دغه
هغه دروانان وبلل او دننه دَ بادشاه کور ته ئې خرګند کړل
١٢ ١٢ او بادشاه دَ شپې پورته شه او خپلو مريونو ته ئې وويل
چه زه به خبر درکړم چه څمونږ دَپاره آرامیانو څه کړي دي دوي
پوه دي چه مونږ وږي يُو نو له ډيري نه ووتل چه په ورشو
کښې ځانونه پټ کړي هرکله چه له ښهرَ را ووزي نو ژوندي
١٣ به ئې ونيسو او ښهر ته به ننه ووزو ١٣ او دَده له مريونو يوه
ځواب وکړ ويل ئې چه څوک دِ واخلي پنځه له هغو پاتې شويو
آسونو چه په کښې پاتې دي (دغه خو دَ اسرائيل دَ ټول قوم په
شان دي چه په کښې پاتې دي ګوره چه دغه دَ اسرائيل دَ هغه
ټول جماعت په شان چه فنا شول) او وا به ئې ستوو او ګورو
١٤ به ١٤ او دوي دَدويو دَګاډيو اسونه واخستل او بادشاه دَ آرامیانو
١٥ په لښکر پسې واستول ويل ئې لاړ شئ او وګورئ ١٥ او دوي
په هغو پسې تر اردنَ پورې لاړل او ګوره چه ټوله لار له جامو
او له لوښو ډکه وه چه ارامیانو په خپلو تړهيدلو غورزولي وَو
١٦ او قاصدان را وجاروتل او بادشاه ته ئې څرګنده کړه ١٦ نو خلق
ووتل او دَ آرامیانو ډيره ئې لوټ کړه نو يو اوړي دَ ميدې په
يوه شاقل او دوه اوړي اوربوشي په يوه شاقل وَو موافق دَ
١٧ کلام دَ خداوند ١٧ او بادشاه هغه بهادر چه دَده په لاس
ئې تکيه کوله په دروازي باندِ ودراوه او خلقو هغه په دروازي
کښې پايمال کړ او مړ شه لکه چه مردِ الله دَده په باب کلام
١٨ وکړ هرکله چه بادشاه ورته کوز شه ١٨ او لکه چه مردِ الله
بادشاه ته کلام وکړ وويل چه دوه اوړي دَ اوربشو به په

یوه شاقل او یو اوړي دَ میدي به په یوه شاقل لکه دا وقت
۱۹ په صبا دَ سامرِيې په دروازي کښ وِي ۱۹ او هغه بهادر مردِ
الله ته ځواب ورکړ و ئي ویل نو گوره که خداوند به
آسمانونو کښ کړکۍ جوړي کړي نو هسي کیږي لکه دا کلام؟
او هغه وویل چه ته به ئي په خپلو سترګو ووینې لیکن ور
۲۰ نـه به و نه خوري ۲۰ او هغه لره داسي وه نو خلقو په دروازې
پائمال کړ او مړ شه ٭

# اتم باب

۱ ۱ او الیشَع هغي ښځي ته چه دَدې زوي ئي بیا ژوندي کړ وویل
چه پورته شه او ته او ستا کور لاړ شئ او چرته چه استوګنه
کوي هلته استوګنه کوه ځکه چه خداوند لوږه وبلله او
۲ دغه به په زمکه اوه کاله راشي ۲ او هغه ښځه پاځیده او دَ
مردِ الله دَ خبري په موافق ئي وکړل او ذا او دَ دوي کور روان
شول او اوه کاله دَ فلسطیانو په زمکه کښ ئي استوګنه وکړه
۳ ۳ او دَ اُوو کالو په آخر کښ داسي وشوه چه هغه ښځه
دَ فلسطیانو له زمکي را وجاروتله او لاړه چه بادشاه ته
۴ دَ خپل کور او دَ خپل پټي په باب فریاد وکړي ۴ او هغه
بادشاه جیحزِيَ ځوان دَ مردِ الله سره خبره وکړه ویل ئي چه
ما ته هغه ټول لوي کارونه چه الیشَع وکړل رابیان کړه -
۵ ۵ او داسي وشوه چه ده بادشاه ته بیان کاوه چه هغه
څرنګ مړي بیا ژوندي کړ نو گوره هغي ښځي چه دَدې زوي
ئي بیا ژوندي کړ بادشاه ته دَ خپل کور او دَ خپل پټي په
باب فریاد وکړ او جیحزِيَ وویل چه اي خاوندَ بادشاهَ دا
هغـه ښځـه دَه او دا ئي هغه زوي دَی
۶ چه الیشَع بیا ژوندي کړ ۶ نو هغه بادشاه له هغي ښځي

پوښتنه وکړه او دي ورته بیان وکړ او بادشاه دي ته خواجه‌سرا
ورکړ ویل ئي چه دَدغي ټول چه ورته کیږي وجارباسه او
ټول حاصلونه دَ پټي له هغه وقت چه دي زمکه پریښوه تر
اوسَ پوري

۷ ۷ او الیشع دمشق ته لاړ شه او بنهدد دَ ارام بادشاه
رنځور وه او ورته څرګند کړي شه په دي ویلو سره چه مردِ
۸ الله دلته راغی ۸ او بادشاه حزائیل ته وویل چه پیشکش په
خپل لاس کښ واخله او دَ مردِ الله ملاقات ته ورشه او په
هغي سره دَ خداوند پُرسش ورنه وکړه ووایه چه زه به
۹ له دي رنځ نه روغ شم څه؟ ۹ او حزائیل دَ هغه ملاقات ته ورغی
او پیشکش ئي په خپل لاس کښ واخست او دَ دمشق له ټولو
ښو څیزونو نه دَ څلویښتو اوښانو بار او راغي او دَ هغه دَ
وړاندِ ودریده او ویل ئي چه ستا زوي بنهدد بادشاه دَ ارام
زه درته راستولي یم وایي چه زه به له دي رنځ نه روغ شم څه؟
۱۰ ۱۰ او الیشع ورته وویل چه لاړ شه او ورته ووایه چه په
شفا کیدلو کښ ته به شفا ومومي لیکن خداوند راښکاره کړي
۱۱ دي چه په مرګ به ومري ۱۱ او ده خپل مخ ودراوه او وئي لګاوه څو چه وشرمیده
۱۲ او مردِ الله وژړل ۱۲ او حزائیل وویل چه څما خاوندَ ولي ژاړي ده وویل دې دپاره
چه زه هغه بدي پوهیږم چه ته به ئي له بني‌اسرائیل سره وکړي
چه ته به دَ دوي په محکمو ښهرونو اور وراستَوي او غوره ځوانان
به ئي په توري قتل کړي او هلکان به ئي ریزه‌ریزه او بارداري به ئي
۱۳ وشیري ۱۳ او حزائیل وویل چه ستا مریي سپي دَی چه دا لوي
کار به وکړي او الیشع وویل چه خداوند ما ته ته په ارام
۱۴ بادشاه راښکاره کړي یي ۱۴ او دَي له الیشعَ روان شه او
خپل خاوند ته ورغي او هغه ورته وُوِ چه الیشع څه درته

و ویل او ده ورته ووېل چه ما ته يئ وويل چه په شفاكيدلو
۱۵ به ته شفا ومومي ۱۵ او په صبا يئ خامتا واخستله او په اوبو
يئ ډوبه كړه او دَ هغه په مخ يئ وغوړوله او هغه مړ شه
او حزائيل دَده په ځاي بادشاه شه
۱۶ ۱۶ او په پنځم كال دَ يورام بن اخاب بادشاه دَ اسرائيل
او يهوشافاط بادشاه دَ يهوداه يهورام زوی دَ يهوشافاط دَ
۱۷ يهوداه بادشاه شه ۱۷ او چه هغه بادشاه شه دَ دوه ديرشو
۱۸ كالو وه او اته كاله يئ په اورشليم كښ بادشاهي وكړه ۱۸ او دئ
دَ اسرائيل دَ بادشاهانو په لاري لاړ شه لكه چه دَ اخاب
كور كار وكړ ځكه چه دَ اخاب لور دَده ښځه وه او ده دَ خداوند
۱۹ په ستركو كښ بدي وكړه ۱۹ مګر خداوند نه غوښت چه يهوداه
نيست كړي دَ داؤد بنده خپل دَپاره لكه چه ده وويل چه زه
۲۰ به ده ته او دَده اولاد ته تل ورځي يو چراغ وركړم ۲۰ او دَده
په ورځو كښ آدوم دَ يهوداه دَ لاس له لاندِ نه ياغي شه
۲۱ او په خپلو ځانو يئ يو ملك بادشاه ودراوه ۲۱ او يورام سعير
ته پوري شه او ټولي ګاډئ ورسره وي او هغه په شپې پورته
شه آدوميان چه ترِ ګرځيدلي وو و يئ وهل او سرداران دَ
۲۲ ګاډيو او خلق خپلو خيمو ته وتښتيدل ۲۲ او آدوم دَ يهوداه دَ
لاس له لاندِ نه لا تر نن ورځي ياغي دئ نو په هغه وقت لبنه
۲۳ هم ياغي شوه ۲۳ او نوري خبري دَ يورام او هرڅه چه ده وكړل
دَ يهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامي په كتاب كښ ليكلي نه دي
۲۴ څه؟ ۲۴ او يورام له خپلو پلارونو سره ځملاست او له خپلو
پلارونو سره دَ داؤد په ښهر كښ ښخ كړي شه او اخزياه
زوي دَده دَده په ځاي بادشاه شه
۲۵ ۲۵ په دولسم كال دَ يورام بن اخاب بادشاه دَ اسرائيل

۲۶ اخزیاه زوي دَ یهورام بادشاه دَ یهوداه بادشاهي وکړه او اخزیاه
چه بادشاه کیده دَ دویشتو کلونو وه او یو کال ئې په اورشلیم
کښ بادشاهي وکړه او دَ مور نوم ئې عثلیاه لور دَ عمري بادشاه
۲۷ دَ اسرائیل وه ۲۷ او دي دَ اخاب دَ کور په لارو لاړ شه او دَ
خداوند په سترګو کښ ئې بدِي وکړه لکه کور دَ اخاب ځکه چه
۲۸ دي دَ اخاب دَ کور زوم وه ۲۸ او دَي له یورام بنِ اخاب سره
دَ حزائیل بادشاه دَ آرام وجنګ ته په راموت‌جلعاد ورغي او
۲۹ اراميانو یورام ووهه ۲۹ او یورام بادشاه وجاروت چه په یزرعیل
کښ دَ هغو پرهارونو علاج وکړي چه اراميانو په راموت کښ
ور و وهل هرکله چه ده دَ حزائیل بادشاه دَ آرام سره جنګ وکړ او
اخزیاه زوي دَ یهورام بادشاه دَ یهوداه ورغَي چه په یزرعیل
کښ یورام بن اخاب وویني ځکه چه هغه رنځور وه *

# نهم باب

۱ ۱ او الیشع هغه نبي یو له زامنو دَ نبیانو وباله او ورته ئې وویل
چه خپله ملا ونړه او دغه بښیښه دَ تیلو په خپل لاس کښ
۲ واخله او راموت‌جلعاد ته ورشه ۲ او هلته چه ورسیږي نو یاهو
بن یهوشافاط بنِ نمشِي هلته وګوره او ننوزه او دَ ورونړو
۳ له مینځ نه ئې پورته کړه او اندروني خوني ته ئې دننه بوزه ۳ او
دغه دَ تیلو بښیښه واخله او دَ هغه په سر ئې توي کړه او
ووایه چه خداوند داسي امر کوي چه ته مِ په اسرائیل بادشاه
مسحه کړي بیا هغه دروازه وازه کړه او را وتښته او صبر مه کړه
۴ ۴ نو هغه ځوان هغه نبي خوان راموت‌جلعاد ته روان شه ۵ او
۵ چه ورغي نو ګوره چه دَ لښکر سرداران ناست وُو نو ده ورته
وویل اي سرداره ځما درسره یوه خبره دَه او یاهو وویل چه

له مونږ ټولو نه له چا سره ده؟ او ده ورته وويل له تا سره
اي سرداره ۶ او هغه پورته شه او کورته ننوت او ده يې ۶
په سر تيل توي کړه نو ورته يې وويل چه خداوند الله دَ
اسرائيل داسي وويل چه ته مِ دَ خداوند په امّت په اسرائيل
بادشاه مسحه کړي ۷ او ته به دَ خپل خاوند اخاب کور ووهي ۷
چه زه دَ خپلو بندګانو نبيانو دَ وينو بدله او دَ يهوه دَ ټولو
بندګانو دَ وينو دَ ايزبَل له لاسَ واخلم ۸ نو به ټول کور دَ اخاب ۸
برباد شي او زه به هر يو نر هلک او هغه چه په اسرائيل
کښ بند کړي شوي او خلاص کړي شوي وي پريکړم ۹ او دَ ۹
اخاب کور به دَ يربعام بن نباط په شاني او دَ بعشا بن اخيا
دَ کور په شان کړم ۱۰ او سپي به ايزبَل دَ يزرعيل په پټي کښ ۱۰
وخوري او داسي څوک به نه وي چه قبر کښ يې ښخ کړي بيا
يې دروازه وازه کړه او وتښتيده ۱۱ نو ياهو دَ خپل خاوند ۱۱
مريونه ته ورغي او يو ورته وويل چه سلامتيا ده څه؟
دا شجاع غازي څه دَپاره درته راغلي وه او ده ورته وويل چه
تاسي هغه سړي پيژنئ او خبر يې هم ۱۲ او هغو وويل دروغ ۱۲
راڅرګند کړه که نه او ده وُوِ چه داسي او داسي امر يې راته
وکړ وويل يې چه خداوند داسي امر کوي چه ته مِ په اسرائيل
بادشاه مسح کړي ۱۳ او هغو تلوار وکړه او هر سړي خپله ۱۳
جامه واخسته تر لاندِ دَده يې دَ ځان په جرم دَ زينې کيښوده
او توريي يې پوک وهله او وويل يې چه ياهو بادشاه شه
۱۴ او ياهو بن يهوشافاط بن نمشي له يورام نه باغي شه ۱۴
او يورام په راموت جلعاد ساتونکي وه ده او ټول اسرائيل
له حزائيل بادشاه دَ ارام له مخي نه ۱۵ او يهورام بادشاه وجاروت ۱۵
چه په يزرعيل کښ علاج وکړي دَ هغو پرهارونو چه اراميانو

پرِ ووهل هرکله چه ده دَ حزائیل بادشاه دَ آرام سره جنګ وکړ
او یاهو وویل چه که ستاسي په ښانونو کښ خوښه وِي نو
هیڅوک دِ له ښهره خلاص نه وزِي چه هغه لاړ شِي او په
١٦ یزرعیل کښ څرګند کړِي ١٦ او یاهو په ګاډيِ سور شه او
یزرعیل ته لاړ ځکه چه یورام هلته پروت وه او اخزیاه بادشاه
١٧ دَ یهوداه ورغي چه یورام ووینيِ ١٧ او په یزرعیل کښ په یوه
برج کښ څارکونکي ولاړ وه او دغه دَ یاهو ټولي دَده په راتللو
کښ ولید او وئ ویل چه زه یو ټولي وینم او یورام وویل
چه یو سوار راوله او دَ هغو مخې ته ئې واستوه او وِ دِ وايِي
١٨ خیر دَي ١٨ او دَ آس سورئ مخې ته ورغي او وئ ویل چه بادشاه
داسي امر کوِي چه خیر دَي او یاهو وویل چه ستا له خیر
سره څه دِي؟ څما دَ وروستو وګرزه او څاربان څرګند کړه
وئ ویل چه هغه استازي ور ورسیده او نه راجاروزِي -
١٩ ١٩ او ده دَ آس دویم سور ورواستاوه او هغه دوي ته
ورسیده او وئ ویل چه بادشاه داسي وايِي چه خیر دَي او
او یاهو ورته وویل چه ستا دَ خیر سره څه دِي؟ څما دَ
٢٠ وروستو وګرزه ٢٠ او څاربان څرګند کړه ویل ئې چه هغه ور
ورسیده او نه راجاروزِي او دَ دغه دَ ټک تیزوالي خو دَ یاهو بن
نمشِي دَ ټک دَ تیزوالي په شان دي ځکه چه هغه په لیونتوب
٢١ سره ټک تیزِي ٢١ نو یهورام وویل ګاډي وتړئ او هغوي ګاډي
وتاړه او یهورام بادشاه دَ اسرائیل او اخزیاه بادشاه دَ
یهوداه هر یو په خپل ګاډِي کښ سواره ووتل دَ یاهو
٢٢ مخې ته او دَ نابوت یزرعیلي په پټي کښ ئې وموند ٢٢ او
چه یهورام یاهو ولید نو وئ ویل چه خیر دَي اي یاهو؟
او ده ووِ هغه خیر به څه وِي تر هغه پوري چه ستا دَ مور

۲۳ ایزبِل زناکارۍ او دَدې سحر کړې لا تر اوسه پورې ډېرې دِي ۲۳ او
یهورام خپل لاسونه وګرزول او وتښتید او اخزیاه ته یې ووِ اي
۲۴ اخزیاه چل دي ۲۴ او یاهو خپل لاس په لندي سره ډک کړ او
یهورام یې دَ دواړو ولیو په مینځ کښ وویشت او هغه غشي
۲۵ دَده له زړه نه ووت او دي په خپل کاډي کښ ولویده ۲۵ او
ده بِدقر سردار ثالث خپل ته وویل پورته یې کړه او دَ نابوت هغه
یزرعیلي دَ پټي په ټوکړه کښ یې وغورزوه ځکه چه یاد کړه چه زه
او ته جوړه سره دَده په پلار اخاب پسي سواره وُو نو خداوند
۲۶ په هغو باندِ دا بار کیښود ۲۶ چه ما پرون دَ نابوت وِیني او دَده
دَ زامنو وِیني و نه لیدلي ځه؟ خداوند وحي کوِي او زه به تا ته
په دي پټي کښ بدله درکړم خداوند وحي کوِي نو اوس یې پورته
کړه او په هغه پټي کښ یې وغورزوه په موافق دَ کلام دَ خداوند
۲۷ ۲۷ او اخزیاه بادشاه دَ یهوداه ولید او دَ باغ دَ کور په لاري
وتښتیده او یاهو ورپسي ټه او ویل یې چه دغه هم په کاډي
کښ ووهئ او دَ جُور په خُتُنه داسي وشوه چه یبلعام ځنګه وه
۲۸ او دي مجدّو ته وتښتیده او هلته مړ شه ۲۸ او دَده مریونو په
کاډي کښ اورشلم ته یوړ او دَده په قبر کښ یې دَ خپلو پلرونو
سره دَ داؤد په ښهر کښ ښخ کړ
۲۹ ۲۹ او په یولسم کال دَ یورام بن اخاب اخزیاه په یهوداه
۳۰ بادشاهي وکړه ۳۰ او یاهو یزرعیل ته راغي او ایزبل واورید نو
خپلي سترګي یې په رانجو کړي او سر یې ښائسته کړ او له دریچي
۳۱ نه یې کتل ۳۱ او چه یاهو په دروازي ورننه وت نو دي وویل
۳۲ چه زِمري قاتل دَ خاوند خپل له سلامتي وه ځه؟ ۳۲ او ده
خپل مخ دَ دریچي په لوري پورته کړ او وې ویل څوک له ما سره
۳۳ څوک؟ نو دوو دریو خواجه سراو دَده په لوري وکتل ۳۳ او ده

وويل دغه کوزه وولئ او هغو وويشتله او ځرېکي دَ وينې ئې په
۳۴ هغه ديوال او په هغو آسونو پرېوتلي او ده پايماله کړله ۳۴ او
ننوت او و ئې خوړل او و ئې څښل او و ئې ويل چه هم دغه ملعونه
۳۵ ولټوئ او ښخه ئې کړئ ځکه چه دغه دَ بادشاه لور ده ۳۵ او
هغوي ئې ښخولو ته ورتلل نو په کښ ئې له کپرئ او پې له پښو
۳۶ او له ورغويو دَ لاسونو ئې نور هيڅ و نه موندل ۳۶ نو دوي وجاروتل
او دا ئې ځرګند کړل نو ده وويل چه دا هغه کلام دَ يهوه دي هغه
چه دَ خپل بنده ايلياه هغه تشبي په لاس ئې کلام وکړ و ئې
ويل چه دَ يزرعيل په پټي کښ به دَ ايزابل غوښې سپي وخوري
۳۷ ۳۷ او دَ ايزابل لاس به دَ يزرعيل دَ پټي په مخ باندِ لکه سره به
هسي پرته وي هسي چه څوک و نه وائي چه دا ايزابل ده *

# لسم باب

۱ ۱ او په سامريه کښ دَ اخاب اويا زامن وُو او ياهو خطونه وليکل
او سامريي ته ئې واستول دَ يزرعيل سردارانو هغو سپين ږيرو ته
۲ او دَ اخاب امانتدارانو ته ئې وويل ۲ او اوس چه دا خط تاسو
ته رسيږي او تاسو سره ستاسو دَ خپل خاوند زامن دي او تاسو
۳ سره کاډي او اسونه او محکم ښهر او وسلې دي ۳ نو هغه چه
ستاسو دَ خاوند له زامنو بهتر او مُصلح وي وګورئ او دَ خپل
پلار په تخت ئې کښنوئ او دَ خپل خاوند دَ کور دَپاره جنګ وکړئ
۴ ۴ او هغوي ډير ډير وويريدل او و ئې ويل ګورئ چه دَ دغه دَ وړاند
۵ دوه بادشاهان و نه دريدل نو مونږ به څرنګ ودريږو ۵ نو هغه
چه په کور باندِ وه او هغه چه په ښهر باندِ وه او سپين ږيرو
او امانتدارانو ياهو ته واستاوه ويل ئې چه مونږ ستا مريونه
يُو او هر څه چه ته وائي هغه به کوُو هيڅ سړي به بادشاه نه کړُو

٦ هغه څه چه ستا په سترګو کښې ښه وِي هغه وکړه ٦ او ده هغوي
ته دويم خط وليکه ويل يې چه که تاسو ځما يئ او تاسو ځما
اوريدونکي يئ نو تاسي سرونه دَ هغو کسانو چه ستاسي دَ خاوند
زامن دِي واخلئ او ما ته يې صبا په داسي وقت کښې يزرعيل ته
راوړئ او دَ بادشاه زامن اويا سړي چه وُو له هغو غټانو دَ
٧ ښهر سره وُو چه دَ دوي پالنه يې کوله ٧ او داسي وُشوه چه
هغو ته هغه خط ورسيده نو دَ هغه بادشاه زامن يې ونيول
او اويا سړي يې ووژلل او دَ دوي سرونه يې په ټوکرو کښې کيښودل
٨ او ده ته يې يزرعيل ته وليږل ٨ او استازي راغي او ده ته يې
خرګند کړ ويل يې چه هغو دَ بادشاه دَ زامنو سرونه راوړل او
ده ورته وويل چه دوه ټودي دَ دروازي مدخل څنګه تر صباح
٩ پوري کيږدئ ٩ او په صباح کښې داسي وشوه چه دي ورغي
او ودريده او ټول امت ته يې وويل چه تاسي صادقان يئ ګورئ
ما په خپل خاوند باندِ ياغي توب کاوه او قتل مِ کړ نو دا ټول
١٠ چا ووهل ١٠ او اوس پوه شئ چه دَ خداوند له هغه کلام نه
چه خداوند دَ اخاب په کور باندِ کلام وکړ هيڅ به په زمکه
بري نه وزي او خداوند هغه چه دَ خپل بنده الياه په لاس
١١ يې کلام وکړ و يې کړل ١١ او ياهو هغه ټول چه په يزرعيل کښې
دَ اخاب دَ کور پاتي وُو ووهل او دَده ټول غټان او دَده
پيژندګلوئ او دَده کوهينان تر دي حده چه يو يې هم ده لره
١٢ باقي پري نه ښود ١٢ او دي پورته شه او روان شه او سامريي
١٣ ته لاړ او دَ بيتِ عقد دَ شپانو په لاري کښې چه وه ١٣ نو ياهو
دَ اخزياه بادشاه دَ يهوداه ورونړه ومندل او ده ووِ چه تاسو
څوک يئ او دوي وويل چه موږ دَ اخزياه ورونړه يُو او موږ
ورځو چه دَ بادشاه زامنو ته او دَ ميرملکي زامنو ته سلام

۱۴ وکړو ۱۴ او ده وویل چه ژوندي ئي ونيسئ او ژوندي ئي ونيول
او دَ بيتِ عقد کوهي څخه خلوېښت سړي ئې ووژلل او يو سړيَ دوه
ئي ورنه پري نه ښود
۱۵ ۱۵ او له هغه ځايَ روان شه او يهوناداب بنِ رکاب چه
دَده ملاقات ته راتۀ ومند او هغه ده ته مبارکي ورکوله او
ده هغه ته ووِ چه شته ديَ ستا زړه راست لکه چه ځما زړه
ستا له زړه سره ديَ څه ؟ او يهوناداب وويل شته: نو هغه
ووِ که شته لاس راکړه او هغه لاس ورکړ او خپل کاډي ته ئي
۱۶ وخيژاوه ۱۶ او ده ورته وويل چه له ما سره راځه او ځما غيرت
چه دَ خداي دَپاره دَيِ و ئي گوره نو دَيِ ور سره په کاډيَ کښِ سور
۱۷ شه ۱۷ او سامريي ته راغلل او هغه ټول چه په سامريي کښِ دَ
اخاب پاتي وُو و ئي وهل ځو چه ئي فنا کړل دَ يهوه دَ کلام په
۱۸ موافق چه ايلياه ته ئي کلام وکړه ۱۸ او ياهو ټول اُمّت جمع کړ او ورته
و ئي ويل چه اخاب دَ بعل لږ څه عبادت کاوه او ياهو به ئي
۱۹ ډير عبادت کوي ۱۹ او اوس ما ته ټول نبيان دَ بعل ټول عابدان
او کوهينان ئي را و بولئ يو سړي دِ غيرحاضر نه شي ځکه چه زه
دَ بعل دَپاره يوه لويه ذبيحه کوم او هرڅوک چه غيرحاضر شي
ژوندي به نه وي او ياهو په عقب سره کار کاوه تا چه دَ بعل
۲۰ عابدان برباد کړي ۲۰ او ياهو وويل چه دَ بعل دَپاره اعتکاف او
۲۱ تقديس وکړيِ او منادي ئې کړه ۲۱ او ياهو په ټول اسرائيل کښِ
واستاوه او ټول عبادت کونکي دَ بعل راغلل او يو سړي پاتي
نه وه چه را نه غي او دَ بعل کور ته ننوتل او دَ بعل کور پوري
۲۲ اوري ډک شه ۲۲ او ده هغه ته چه په پوشاک‌خاني باندِ وه
وويل چه دَ ټولو عبادت کونکو دَ بعل دَپاره جامي راو باسه
۲۳ او هغه ورته جامي راويستلي ۲۳ او ياهو او يهوناداب بنِ رکاب

دَ بعل کور ته ننوتل او عبادت کونکو دَ بعل ته ئي وویل چه
تلاش وکړئ او کورئ هسي نه چه دلته له تاسو سره دَ خداوند
۲۴ عبادت کونکي وِي مگر يواځي دَ بعل عبادت کونکي دِ وِي ۲۴ او دوي
ننوتل چه ذبحي او دَ سيزلو قرباني وکړي او ياهو دَ باندِ اتيا سړي
ودرول ويل ئي هغه سړي چه له هغو کسانو نه چه زه ستاسو
لاسونو ته راولم خلاصي ورکوي نو ځان به ئي دَ هغه دَ ځان په
۲۵ بدل کښ وِي ۲۵ او هرکله چه ده دَ سيزو قرباني کول تمام کړل
نو ياهو زغليدونکيو او بهادرانو ته وويل چه و ئي وهئ يو سړيَ
و نه وزِي او دوي هغوي دَ تورِي په مخ ووهل او زغليدونکيو او
بهادرانو هغوي وغورزول او دوي دَ بعل ښهر ته لاړ شول -
۲۶ ۲۷ ۲۶ او دَ بعل دَ کور صورتونه ئي راويستل او و ئي سيزل ۲۷ او دَ
بعل صورت ئي ونړاوه او دَ بعل کور ئي ونړاوه او تر نن ورځي
۲۸ پوري ئي پاخانه کيښودل ۲۸ او ياهو دَ اسرائيل له مينځ بعل برباد
۲۹ کړ ۲۹ ليکن دَ يربعام بن نباط له خطا چه په اسرائيل ئي خطا
وکړه ياهو دَ دي دَ پسي کيدلو کناره نه شه يعني له هغو سرو
۳۰ زرو سخيو چه په بيت ايل او په دان کښ وُو ۳۰ او خداوند ياهو
ته وويل دَ دي دَ پاره چه تا ښيگړه وکړه په هغه کارکولو کښ
چه څما په سترگو کښ راست وه او موافق دَ هر هغه څه چه
څما په زړه کښ دَ اخاب په کور دِ وکړل نو زامن دَ څلورمي
۳۱ پيړئ به ستا دَ پاره دَ اسرائيل په تخت کښيني ۳۱ ليکن ياهو
دَ يهوه الله دَ اسرائيل په توريت تلل په خپل ټول زړه سره
و نه ساتل چه دَي له خطاؤ دَ يربعامَ چه په اسرائيل ئي خطا
وکړه کناره نه شه

۳۲ ۳۲ په دغو ورځو کښ خداوند دَ اسرائيل په قضا کولو
شروع وکړه چه حزائيل دوي په ټولو سرحدونو دَ اسرائيل کښ

۳۳ او وهل ۳۳ له اردنَ تر نمرخاته پوري ټوله زمکه دَ جلعاد جاديان
او رائوبيان او منسّيان له عروعيرَ چه دَ ارنون په خوړ دي او
۳۴ جلعاد او باشان ۳۴ او باقي خبري دَ ياهو او هر څه چه ده وکړل
او دَده ټول شاغلتوب دَ اسرائيل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په
۳۵ کتاب کښ ليکلي شوي نه دي څه؟ ۳۵ او ياهو له خپلو پلرونو
سره څملاست او په سامريي کښ ئي ښخ کړ او يهوآخاز دَده زوي
۳۶ دَده په ځاي بادشاه شه ۳۶ او هغه ورځي چه ياهو
په اسرائيل باندِ په سامريي کښ بادشاهي وکړه اته ويشت کاله وُو *

# يولسم باب

۱ ۱ او چه عتلياه مور دَ اخزياه وليدل چه دَدي زوي مړ شه پورته
۲ شوه او ټول اولاد دَ بادشاه ئي برباد کړ ۲ مګر دَ يورام بادشاه
لور يهوشبع خور دَ اخزياه يواش زوي دَ اخزياه واخسته او دَ
بادشاه دَ زامنو له منځ چه مړ کړي شول دي او دَده دايي دَ
کټونو له خوني په غلا يووړ او دَ عتلياه له مخ نه ئي پټ کړ
۳ او ده مړ کړي نه شه ۳ او دي ځان څخه دَ خداوند په کور
کښ شپږ کاله پټ ساتلي وه او عتلياه په زمکه باندِ ملکي کوله
۴ ۴ او په اوم کال کښ يهوياداع واستاوه او دَ سلونو سرداران
او جلاديان او زغليدونکي ئي سره واخستل او په بيت يهوه کښ
ئي ځان سره بوتلل او ده ورسره وعده وکړه او سوګند ئي پري
وکړ په بيت يهوه کښ او دوي ته ئي دَ بادشاه زوي ښکاره کړ
۵ ۵ او دوي ته ئي وفرمايه و ئي ويل چه دا هغه خبره دَه چه
تاسي به ئي کوئ چه هغه دريمه ستاسو چه په سبت کښ
۶ ننوزي دَ بادشاه دَ کور ساتنه به وساتئ ۶ او بله دريمه دِ
دَ سُور په دروازي کښ وي او بله دريمه دِ په هغي دروازي

کښ چه دَ زغليدونکيو دَ ورستو لوري ته وِي نو په دي شان
۷ په دَ بيت ساتنه وساتئِ دَپاره دَدي هتال کونکي شئِ ۷ او دوه
فرقي له تاسو ټولو چه په سبت کښ وتونکي دِي هم دغه به دَ
۸ بيتِ يهوه ساتنه وساتئِ دَ بادشاه دَپاره ۸ او تاسي به په بادشاه
چارچاپيره گرزئِ هر سړي دِ خپله وسله په خپل لاس کښ
واخلي او څوک چه صفونو ته راځي مړ کړي دِ شي او له بادشاه
۹ سره دَده په وتلو او ننوتلو کښ شئِ ۹ او دَ سلونو سردارانو
لکه ټول چه يهوياداع هغه کوهين ورته فرمايلي وُو وئي کړل
او هر سړي خپل خپل تن هغه چه په سبت کښ [a] وتونکي وُو
۱۰ واخستل او هغه يهوياداع کوهين ته راغلل ۱۰ نو هغه کوهين دَ
سلونو سردارانو ته هغه نيزي او هغه ډالونه ورکړل چه دَ
۱۱ داؤد بادشاه وُو چه په بيتِ يهوه کښ وُو ۱۱ او هغه زغليدونکي
ودريدل هر سړي وسله خپله په لاس خپل کښ دَ بيت له
ښي اوړي دَ بيت تر کيڼي اوړي پوري له مذبح تر بيتَ پوري
۱۲ چارچاپيره له بادشاه نه ۱۲ او ده دَ بادشاه زوي راويوست او
تاج ئي ورباندِ کيښود او عهد **تورات** ئي ورکړ او بادشاه ئي
کړ او مسح ئي کړ دوي دَ لاسونو ورغوي ووهل او ويل ئي
۱۳ چه بادشاه دِ ژوندي وِي ۱۳ او چه عتلياه دَ زغليدونکو او دَ
۱۴ خلقو آواز واوريده نو اُمت ته بيت يهوه له راغله ۱۴ او وئي کتل
او گوره چه بادشاه په هغه ستني ولاړ دَ دستور په موافق او
سرداران او توري غږونکي دَ بادشاه او ټول اُمت دَ زمکي خوشي
کوِي او توري پوک وهي نو عتلياه خپلي جامي وشلولي او
۱۵ ناري ئي وکړي چه پټنا پټنا ۱۵ او يهوياداع هغه کوهين دَ سلونو
سردارانو او بارخواستانو ته وفرمايل ورته ئي وويل دَ باندِ
صفونو نه ئي وباسئِ او هغه چه په دي پسي دروي

[a] د ننه وتونکي وو سره له هغو چه په سبت کښ

په توري ئې مړه کړئ څکه چه هغه کوهين و ويل چه په بيتِ
۱۶ يهوه کښ دِ مړه کړي نه شِي ۱۶ او هغه په دي لاس واچاوه او
دا په هغي لاري ورغله چه په کښ دَ بادشاه کور ته آسونه
ورننوتل او هلته مړه کړلي شوه

۱۷ ۱۷ او يهوياداع دَ يهوه په مينځ او دَ بادشاه په مينځ او دَ
اُمّت په مينځ کښ يوه وعده ثابته کړه چه دوي دِ دَ يهوه
۱۸ اُمّت وِي او دَ بادشاه او دَ اُمّت په مينځ کښ هم ۱۸ او ټول
خلق دَ زمکي دَ بعل کور ته ورغلل او و ئې نړاوه او دَ هغه
مذبحونه او بتان دَ هغه په ښه شان سره ئې مات کړه او متان
کاهن دَ بعل ئې دَ مذبحونو دَ وړاندِ قتل کړ او هغه کوهين
۱۹ په بيتِ يهوه باندِ بازخواستان مقرّر کړل ۱۹ او ده دَ سلونو
سرداران او جلاديان او زغليدونکي واخستل او ټول اُمّت
دَ زمکي او دغو هغه بادشاه دَ بيتِ يهوه راکوز کړ او دَ
زغليدونکيو دَ دروازي په لاري دَ بادشاه کور ته بوت او دي
۲۰ دَ هغو بادشاهانو په تخت باندِ کښيناست ۲۰ او ټول خلق دَ زمکي
خوشحال شول او ښهر په سکونت شه او عتلياه ئې دَ بادشاه
۲۱ کورڅخه په توري مړه کړله ۲۱ او چه يهوآس بادشاه شه دَ
اوو کالونو وه ❊

# دولسم باب

۱ ۱ او دَ ياهو دَ بادشاهي په اوم کال يهوآش بادشاه شه او
څلويښت کاله ئې په اورشليم کښ بادشاهي وکړه او دَ ده دَ مور
۲ نوم ځبياه وه دَ بيرسبع ۲ او يهوآش هغه کار وکړ چه دَ
خداوند په سترګو کښ راست وه په هغو ټولو ورځو کښ چه
۳ يهوياداع هغه کوهين تعليم ورته کاوه ۳ تش لوړ مکانونه
لري کړي شوِي نه وُو هغه اُمّت په لوړو مکانونو ذبحي کولي او

۴ بخور به ئ سوزول ۳ او يهواش هغو کوهينانو ته وويل چه
ټول مقدس کړي شوي سپين زر چه بيتِ يهوه ته تيريږي هر
سړي دِدَ خپلو ځانونو محصول ټمارِي سپين زر ټول ټول سپين زر
چه دَ هر سړِي په زړه کښ ورباندِ راځي چه دغه بيتِ يهوه ته
۵ راوړِي ۵ نو دغه دِ هغه کوهينان واخلي دَ دوي دَ ځانونو دَپاره
هر يو له خپل آشنا نه او دوي دِ دَ بيت دَ چاؤدونو مرمت
۶ وکړِي هر چرته چه چاؤد مندلي شي ۶ او په درويشتم کال
دَ يهواش بادشاه داسي وشول چه هغه کوهينانو دَ بيت چاؤدونه
۷ مرمت کړِي نه وُو ۷ نو يهواش هغه يهويادَاع کوهين او هغه
نور کوهينان وبلل او ورته ئ وويل چه تاسي ولي دَ بيت
دَ نړيدلي شوي چاؤدونو مرمت نه کوئ او اوس له خپلو
آشنايانو نه سپين زر مه اخلئ بلکه دَ بيت دَ چاؤدونو
۸ دَپاره ئ وردئ ۸ نو کاهنانو دا قبوله کړه چه نه به له امت سپين
۹ زر اخلي او نه به دَ بيت چاؤدونه مرمت کوِي ۹ نو يهويادَاع
هغه کوهين يو صندوق واخست او يو سوري ئ دَ هغه
په سرپوښ کښ وکنود او دَ مذبح په ښي څنګ کښ ئ کيښود
هلته چه سړِي په بيتِ يهوه ته ورننه وزِي او هغو کوهينانو
چه دَ آستانئ ساتونکي وُو هغه ټول سپين زر چه بيتِ يهوه
۱۰ ته به راوړلي شول په هغه کښ به ئ کيښودل ۱۰ او داسي
وشوه چه دوي به وليدل چه په صندوق کښ هغه سپين زر
ډير شول نو دَ بادشاه کاتب او لوي کوهن به ور وختل
هغه به ئ په کڅوړو کښ وتړل او هغه سپين زر چه په بيتِ
۱۱ يهوه کښ به وُو و به ئ شميرل ۱۱ او هغه تللي شوي سپين
زر به ئ دَ کاردارانو په لاس باندِ ورکول هغوي ته چه دَ
بيتِ يهوه بازخواستان وُو او دوي به په نجارانو او معمارانو

چه په بیتِ یهوه باندې د مرمت کولو دپاره

۱۲ چه دَ بیتِ یهوه کارکونکي وُو خرڅ کول ۱۲ او جدرانانو ته او
سنګتراشونو ته او دَ لرګو او دَ تراشلو کاڼو دَ پیرودلو دَپاره
دَ بیتِ یهوه دَ چاودونو دَ مرمت کولو دَپاره او دَ هغو ټولو
۱۳ دَپاره ووتل ۱۳ مګر دَ بیتِ یهوه دَپاره دَ سپینو لوښي او ګلګیرونه
او کټوري او توري شوي نه وُو ټول کالي دَ سرو زرو او کالي
۱۴ دَ سپینو له هغو چه دَ بیتِ یهوه راوړلي شو ۱۴ بلکه دوي کارکونکو
۱۵ ته ورکول او هغوي بیتِ یهوه پرې مرمت کاوه ۱۵ او دوي به له
هغو کسانو نه حساب نه آخست چه سپین زر ئې دَ دوي په
لاس ورکړه چه کارکونکو ته ئې ورکړي ځکه چه هغوي په امانتداري
۱۶ سره کار کاوه ۱۶ او سپین زر دَ ګرموالي او سپین زر دَ خطاوي
به بیتِ یهوه ته راوړلي نه شو دَ کوهنانو دَپاره به وُو
۱۷ ۱۷ هغه وقت حزائیل بادشاه دَ ارام وخوت او په جتّه
وجنګیده او و ئې نیوه بیا حزائیل مخ تیار کاوه چه اورشلیم
۱۸ ته رخیژي ۱۸ نو یهوآش بادشاه دَ یهوداه ټول مقدّس څیزونه
چه یهوشافاط او یهورام او اخزیاه دَده پلرونو بادشاهانو دَ
یهوداه مقدّس کړي وُو او دَده خپل مقدّس څیزونه واخستل
او ټول سره زر چه دَ بیتِ یهوه په خزانو کښ او دَ بادشاه په
کور کښ مندلي شول نو حزائیل بادشاه دَ ارام ته ئې واستول
۱۹ او دوي له اورشلیم نه وختل ۱۹ او نوري خبري دَ یوآش او
هرڅه چه ده وکړل هغه دَ یهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامي
۲۰ په کتاب کښ لیکلي نه دي څه ؟ ۲۰ او دَده مریونه پورته شول
او فتنه انګیزي ئې وکړه او دَ ملو په کور کښ چه سلّا ته
۲۱ کوزیږي دي ئې قتل کړ ۲۱ چه یوزاکار بنِ شمعه او یهوزاباد
بنِ شومیر دَده مریونو هغه وواهه او دي مړ شه او دي ئې
دَ داوُد په ښهر له خپلو پلرونو سره ښخ کړ او امصیاه دَده

زوي دَده په ځاي بادشاه شه ✦

# ديارلسم باب

۱ آ په درويشتم كال دَ يوآش زوي دَ اخزياه بادشاه دَ يهوداه
يهواحاز بن ياهو په اسرائيل باندِ په سامريه كښې بادشاه شه
۲ ۲ او ده دَ خداوند په ستركو كښې شرارت وكړ او دَ يربعام بن
نباط په خطاؤ پسي لاړ شه هغه چه په اسرائيل ئې خطاكارِي
۳ وكړه ورنه لري نه شه ۳ او دَ خداوند غضب په اسرائيل گرم
شه او دوي ئې دَ حزائيل شاهِ آرام په لاس او دَ بنهدد بن
۴ حزائيل لاس ته وركړل ټولي ورځي ۴ او يهوآحاز دَ خداوند مخ
ته زارِي وكړه او خداوند دَده اورېدل ځكه چه ده دَ اسرائيل
۵ تنگي وليده ځكه چه دَ آرام بادشاه په تنگ كړل ۵ او خداوند
اسرائيل ته يو خلاصونكي وركړ نو دوي دَ اراميانو دَ لاس له
لاندي كيدلو نه ووتل او بني اسرائيل په خپلو خيمو كښې دَ
۶ وړاندِ پروني په شان اوسيدل ۶ ليكن دوي دَ يربعام دَكور له
خطاؤ چه اسرائيل ئې په دغه خطاكار كړ لري نه شه بلكه
۷ په هغي تلل او په سامريي هم هغه اشيره پاتي شوه ۷ ځكه
چه يهواحاز ته ئې نور اُمّت پري نه ښود مگر پنځوس سواره
او لس گاډِي او لس زره پياده ځكه چه دَ ارام بادشاه دوي
۸ برباد كړل او دوي ئې لكه خاوري دَ غوبلو كولو كيښول ۸ او نوري
خبري دَ يهواحاز او ټول څه چه ده وكړل او دَده شاغلتوب
دغه څو دَ اسرائيل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په كتاب كښې
۹ ليكلي شوي نه دي څه ؟ ۹ او يهواحاز له خپلو پلرونو سره
څملاست او په سامريه كښې ئې ښخ كړ او دَده زوي يواش دَده
په ځاي بادشاه شه

۱۰ ۱۰ په اوه دیرشم کال دَ یوآش بادشاه دَ یهوداه یهواش
بن یهواحاز په اسرائیل باندِ په سامرَه شپارس کاله بادشاهي
۱۱ وکړه ۱۱ او ده دَ خداوند په سترګو کښ شرارت وکړ او له ټولو
خطاؤ دَ یربعام بن نباط هغه چه اسرائیل ئي پري خطا کار
۱۲ کړ لري نه شه بلکه په هغوته ۱۲ او نوري خبري دَ یوآش او هر څه
چه ده وکړل او دَده شاغلتوب چه ترِ له امصیاه بادشاه دَ یهوداه
سره وجنګیده هغه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په
۱۳ کتاب کښ لیکلي نه دي څه ؟ ۱۳ بیا یوآش له خپلو پلرونو
سره څملاست او دَده په تخت یارابعام کښیناست او یوآش په
سامریه کښ له بادشاهانو سره ښخ کړي شه
۱۴ ۱۴ او الیشع په هغه رنځ رنځور شه چه په کښ مړ
شه او یوآش بادشاه دَ اسرائیل ورکوز شه او دَده په مخ
ئي وژړل ویل ئي
اي څما پلاره اي څما پلاره || دَ اسرائیل ګاډي او دَده سواره
۱۵ ۱۵ او الیشع ورته ووِ چه لینده او غشِي را واخله او ده دَ
۱۶ خان دَپاره لینده او غشِي واخستل ۱۶ او ده دَ اسرائیل بادشاه
ته وویل چه په لیندي لاس سور کړه او ده خپل لاس سور
۱۷ کړ او الیشع خپل لاس دَ بادشاه په لاسونو کیښود ۱۷ او وئي
ویل چه دَ مشرق په لوري دریچه پرانزه او ده پرانتله او الیشع
ورته وویل چه وولـه او ده وویشتله او هغه ویل چه
دا دَخداوند دَ خلاصِي غشي || او له آرام نه دَخلاصِي غشي
۱۸ او ته به آرام په آفیق کښ ووهي تر دي چه فنا شِي ۱۸ او ورته
ئي وویل چه غشِي واخله او ده واخستل او ده دَ اسرائیل
بادشاه ته وویل چه په مزکه ئي ووله او ده دري واره وویشتل
۱۹ او ودریده ۱۹ او هغه مردِ الله ورباندِ په قهر شه او وئي

ويل چه که تا پنځه يا شپږ واره وهـلي وي نو به دِ آرام
دومره وهلي وه چه فنا شوي وي او اوس به آرام دري واره
و وهي
۲۰ ۲۰ او اليشع مړ شه او ښخ ئي کړ او دَ کال په راتلو
۲۱ کښې دَ مواب داړي په زمکه کښې راننوتلي ۲۱ او چه دوي دَ
يو سړي ښخ کونکي وُو نو کوره چه هغه داړه ئي وليده نو دوي
هغه سړي دَ اليشع په قبر کښې واچاوه او چه هغه سړي
ور ولويده او دَ اليشع په هډوکو ولګيده نو ژوندي شه
او په خپلو پښو ودريده
۲۲ ۲۲ او حزائيل دَ ارام بادشاه په ټولو ورځو دَ يهوآحاز
۲۳ کښې اسرائيل تنګ کاوه ۲۳ او خداوند په دوي زړه سوي
وکړ او رحم ئي پر وکړ او دوي ته ئي نظر وکړ دَ پاره دَ هغي
وعدي چه له ابراهيم او له اسحاق او له يعقوب سره ئي
کړي وه او ده نه غوښتل چه تباه ئي کړي او نه ئي لا تر اوسه
۲۴ پوري له خپل مخ نه وغورزول ۲۴ او حزائيل بادشاه دَ آرام
۲۵ مړ شه او بنهدد زوي ئي دَده په ځاي بادشاه شه ۲۵ او
بيا يهوآش بن يهوآحاز وګرزيده او دَ بنهدد بن حزائيل له
لاس نه ئي هغه ښهرونه واخستل چه دَده دَ پلار يهوآحاز له
لاس نه ئي په جنګ راخستلي وُو او يوآش هغه دري واره
وواهه او دَ اسرائيل ښهرونه ئي را وګرزول *

## څورلسم باب

۱ ۱ په دويم کال دَ يوآش بن يهوآحاز بادشاه دَ اسرائيل امصياه
۲ بن يوآش بادشاه دَ يهوداه شه ۲ او دغه چه بادشاه کيده
نو دَ پنځه ويشتو کالو وه او نه ويشت کاله ئي په اورشليم کښې

بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نُوم يهوعدان له اورشليمَ وه
۳ ۳ او ده هغه کار وکړ چه دَ خداوند په سترګو کښ راست
وه مګر نه داسي لکه داوُد پلار دَده او ده هرڅه دَ يوآش
۴ پلار خپل په موافق وکړل ۴ تش لوړ مکانونه لري کړي شوِي
نه وُو تر اوسه هغه اُمّت په لوړو مکانونو ذبحي کولي او
۵ بخور به ئي سوزول ۵ او چه بادشاهي دَده په لاس ټينګه
شوه نو ده هغه مريونه خپل وَوژلل چه دَده پلار ئي وهلي
۶ وه ۶ ليکن دَ وژلونکو زامن ئي مړه نه کړل موافق دَ هغه چه دَ
موسیٰ دَ تورِيت په کتاب کښ ليکلي شوِي دِي چه يهوه امر
وکړ و ئي ويل چه پلرونه دِ په زامنو باندِ مړه کړي نه شِي
او زامن دِ په پلرونو باندِ مړه کړي نه شِي ځکه چه هر سړيَ
۷ دِ په خپلي خطاکاريَ مړ کړي شِي ۷ او ده له آدوم دَ مالګي
په خوړي لس زره ووژلل او سالع ئي په جنګ ونيوه او
دَ هغه نوم ئي يقتيل وباله تر نن ورځي پوري
۸ ۸ هغه وقت امصياه يهوآش زوي دَ يهوآحاز زوي دَ
ياهو بادشاه دَ اسرائيل ته قاصدان واستول و ئي ويل چه
۹ راشه چه روبرو سره يو تر بله ووينو ۹ نو يهوآش بادشاه
دَ اسرائيل امصياه بادشاه دَ يهوداه ته خبر ورواستاوه
و ويل ئي چه هغه اغزنه ونه چه په لبنان کښ دَه دَ لبنان
لمڅي ته ويل چه ته خپله لور څما زوي ته دَ ښځي دَپاره
راکړه نو يو دَ ورشو ځناور هلته په لبنان کښ تير شه او
۱۰ اغزنه ونه ئي پايمال کړه ۱۰ او تا په وهلو سره آدوم وواهه
او زړه دِ کبرجن کړ نو په هغه فخر کوه او په خپل کور کښ
اوسه او څه دَپاره په بلا دَ جنګ غرغړه کوي چه ته به
۱۱ پريوزي او يهوداه در سره ۱۱ او امصياه وانه وريدل او

یهوآش بادشاه دَ اسرائیل وخوت او یو تر بله ئې مخونه ولیدل
ده او امصیاه بادشاه دَ یهوداه په بیت شمس کښې چه دَ
۱۲ یهوداه دَي ۱۲ نو یهوداه دَ اسرائیل له وړاندِ مات شه او
۱۳ هر سړي خپلې خېمې ته وتښتېده ۱۳ او یهوآش بادشاه دَ اسرائیل
امصیاه بادشاه دِ یهوداه زوي دِ یهوآش زوي دِ اخزیاه
ونیوه په بیتِ شمس کښې او اورشلیم ته راغې او دَ اورشلیم
دیوال ئې له دروازې دَ افرائیم نه دَ کوټ تر دروازې پورې
۱۴ څلور سوه هاتې پرانت ۱۴ او ټول سره او سپین زر ئې او
ټول کالي چه په بیتِ یهوه کښې موندِه کېده او دَ بادشاه دَ
کور او چه دَ بادشاه دَ کور په خزانو کښې وُو او یرغمال ئې
۱۵ واخستل او سامریه ته وجاړوت ۱۵ او باقي خبرې دَ یهوآش
چه ده وکړلې او دَده شاغلتوب او چه دَې څرنګ له امصیاه
بادشاه دَ یهوداه سره وجنګیده دغه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو
۱۶ دَ روزنامې په کتاب کښې لیکلې شوي نه دِي څه ؟ ۱۶ او یهوآش
له خپلو پلرونو سره څملاست او دَ اسرائیل له بادشاهانو سره
په سامریه کښې ښخ کړي شه او یارابعام دَده زوي دَده په
ځاي بادشاهي وکړه
۱۷ ۱۷ او امصیاه بن یوآش بادشاه دَ یهوداه پس له مرګ
دَ یهوآش بادشاه دَ اسرائیل پنځلس کاله ژوندې وپائیده
۱۸ ۱۸ او باقي خبرې دَ امصیاه دَ یهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامې
۱۹ په کتاب کښې لیکلې نه دِي څه ؟ ۱۹ او په ده باندِ ئې په اورشلیم
کښې فتنانګیزي جوړه کړه او دَې لخیش ته وتښتېده او هلته
۲۰ ئې مړ کړ ۲۰ او په آسونو ئې یووړ او په اورشلیم کښې دَ داؤد
۲۱ په ښهر کښې له خپلو پلرونو سره ښخ کړي شه ۲۱ او ټول
خلق دَ یهوداه عزریاه واخست او دغه دَ شپاړسو کالو وه

او دوي ورپسې لخيش ته واستول

۲۲ او دي ئې دَده دَ پلار امصياه په ځاي بادشاه کړ ۲۲ او ده ايله
بنا کړه او پس له دي چه هغه بادشاه له خپلو پلرونو سره
ځملاست بيا ئې يهوداه ته وګرزوله

۲۳ ۲۳ په پنځلسم کال دَ امصياه بن يوآش بادشاه دَ يهوداه
يارابعام بن يوآش بادشاه دَ اسرائيل په سامريه کښ يوڅلويښت
۲۴ کاله بادشاهي وکړه ۲۴ او ده دَ خداوند په سترګو کښ بدي
وکړه او لري نه شه له هيڅ څيز نه له هغو خطاؤ دَ يارابعام
۲۵ بن نباط نه چه اسرائيل ئې پرِ خطا کار کړ ۲۵ او ده دَ حمات
له ننه وتني نه دَ عربه تر درياب پوري دَ اسرائيل سرحدونه
را وګرزول موافق دَ کلام دَ يهوه الله دَ اسرائيل چه ده په
لاس دَ خپل بنده يوناه بن امتي هغي نبي دَ جتيحافر کلام
۲۶ وکړ ۲۶ ځکه چه خداوند دَ اسرائيل تنګي وليده چه ډير تريخ
شه ځکه چه دَدوي هيڅ بندي کړي شوي نشته او نه هيڅ آزاد
۲۷ کړي شوي او نه دَ اسرائيل مددګار ۲۷ او نه خداوند دَ اسرائيل
دَ نوم په محوه کولو دَ آسمانونو له لاندِ نه خبره کړي ده ليکن
۲۸ دوي ئې دَ يارابعام بن يوآش په لاس سره خلاص کړل ۲۸ او
نوري خبري دَ يارابعام او هرڅه چه ده وکړل او دَده شاعلتوب
چه دَي څرنګ وجنګيده او څرنګ ئې دَ دمشق او حمات چه دَ
يهوداه وُو اسرائيل ته را وګرزول دغه دَ اسرائيل دَ بادشاهانو
۲۹ دَ روزنامي په کتاب کښ ليکلي شوي نه دي څه ؟ ۲۹ او يارابعام
له خپلو پلرونو سره ځملاست دَ اسرائيل له بادشاهانو
سره او زکرياه دَده زوي دَده په ځاي بادشاهي وکړه *

# پنځلسم باب

۱ ۱ په اوه ويشتم کال دَ يارابعام بادشاه دَ اسرائيل عزرياه زوي

دَ امصیاه بادشاه دَ یهوداه بادشاه شه ۲ دغه دَ شپاړسو کالو وه ۲
چه بادشاه شه او دوپنځوس کاله ئې په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه
او دَده دَ مور نوم یکالیاه له اورشلیمَ وه ۳ او ده هغه وکړل چه ۳
دَ خداوند په سترګو راست وُو موافق دَ هر هغه څه چه دَده پلار
امصیاه وکړل ۴ تش هغه لوړ مکانونه لرې کړې شوي نه وُو هغه ۴
اُمت به لا تر اوسَ په لوړو مکانونو ذبحې کولې او بخور ئې پرې خیل
سیزل ۵ او خداوند بادشاه وواهه او هغه دَ مرګ تر ورځې پورې پیس ۵
وه او په مرض‌خانې کښې اوسیده او دَ بادشاه زوی یوثام په کور
وه دَ زمکې په خلقو ئې انتظام کاوه ۶ او نورې خبرې دَ عزریاه او ۶
هرڅه چه ده وکړل هغه دَ یهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامې په
کتاب کښې لیکلې شوې نه دي څه ؟ ۷ او عزریاه له خپلو پلرونو ۷
سره څملاست او دَ داؤد په ښهر کښې دَده له پلرونو سره ښخ کړې شه
او یوثام دَده زوی ئې په ځای بادشاهي وکړه
۸ او په آته دیرشم کال دَ عزریاه بادشاه دَ یهوداه زکریاه ۸
بن یارابعام په اسرائیل باندې په سامریه بادشاهي وکړه ۹ او ده ۹
دَ خداوند په سترګو کښې بدي وکړه لکه چه دَده پلرونو وکړه او
له هغو خطاؤ دَ یارابعام بن نباط چه اسرائیل ئې پرې خطاکار
کړ لرې نه شه ۱۰ او شلوم بن یابیش په ده باندې یاغي‌توب وکړه ۱۰
او دَ خلقو دَ وړاندې ئې ووهه او مړ ئې کړ او دَ هغه په ځای
ئې بادشاهي وکړه ۱۱ او نور کارونه دَ زکریاه ګوره چه دَ اسرائیل دَ ۱۱
بادشاهانو دَ روزنامې په کتاب کښې لیکلې شوي دي ۱۲ دا ۱۲
هغه کلام دَ خداوند دَی چه یاهو ته ئې پرې کلام وکړ وئیل
ئې چه ستا زامن به تر څلورمې پیړۍ پورې دَ اسرائیل په تخت
کښېني او دا هسې وشول
۱۳ شلوم بن یابیش دَ عزیاه بادشاه دَ یهوداه په ۱۳

نه دیرشم کال بادشاه شه او ده په سامریه دَ یوي میاشتي ورځي
۱۳ بادشاهي وکړه ۱۴ او منحیم بن جادي له ترځي وخوت او سامریي
ته راغي او شلوم بن یابیش ئي په سامریه وواهه او مړ ئي کړ
۱۵ او دَ ده په ځاي ئي بادشاهي وکړه ۱۵ او نوري خبري دَ شلوم او هغه
فتنه انګیزي چه ده وکړه دغه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو دَ روزنامي
۱٦ په کتاب کښ لیکلي شوي دي ۱٦ هغه وقت منحیم تفصح وواهه
او هرڅه چه په هغي کښ وو او دَ دغي سرحدونه تر ترځه پوري
ځکه چه دَ ده دَ پاره ئي لري نه کړه هغي ئي ووهل او ټولي حاملي
ئي وځیرلي
۱۷ ۱۷ او په نه دیرشم کال دَ عزریاه بادشاه دَ یهوداه منحیم
زوي دَ جادي بادشاهي وکړه په اسرائیل باندي په سامریه کښ
۱۸ لس کاله ۱۸ او ده دَ خداوند په سترګو کښ بدي وکړه او له
خطاؤ دَ یارابعام بن نباط نه چه اسرائیل ئي خطاکار کړ ټولي ورځي
۱۹ ئي ونه ویست ۱۹ او دَ اشور بادشاه پول په هغه زمکه راغي نو
منحیم پول ته یو زر قنطاره سپین زر ورکړه چه دَ ده لاس ورسره
۲۰ وي تا چه بادشاهي دَ ده په لاس کښ ټینګه کړي شي ۲۰ او منحیم
په اسرائیل په ټولو جبارانو دَ دولت هغه سپین زر خراج
کړل چه دَ اشور بادشاه ته ئي ورکړي په هر یو سړي باندي
پنځوس شاقل سپین زر او دَ اشور بادشاه وګرزیده او هلته
۲۱ په هغي زمکي کښ ونه دريد ۲۱ او نوري خبري دَ منحیم او هرڅه
چه ده وکړل دغه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو په روزنامي کښ
۲۲ لیکلي شوي نه دي څه ؟ ۲۲ او منحیم له خپلو پلرونو سره
څملاست او دَ ده زوي فقحیا دَ ده په ځاي بادشاه شه
۲۳ ۲۳ او دَ عزریاه بادشاه دَ یهوداه په پنځوسم کال فقحیا بن
منحیم دوه کاله په اسرائیل باندي په سامره کښ بادشاهي وکړه

۲۴ او ده دَ خداوند په سترګو کښې بدي وکړه له هغو خطاؤ ۲۴
دَ یارابعام زوي دَ نباط چه اسرائیل ئي پرِ خطا کار کړِ لـري
نه ګرزیده ۲۵ او فقح دَ رملیاه زوي چه دَده دریم وه په ده باندِ ۲۵
فتنه پورته کړه او په سامره کښې دَ بادشاه دَکور په محل کښې
ئي وواهه سره له ارجوب او له اریه او ورسره پنځوس سړي
نور دَ بني جلعاد یانو او دَي ئي قتل کړِ او په ځاي ئي ده بادشاهي
وکړه ۲۶ او نوري خبري دَ فقح او هرڅه چه ده وکړل ګوره هغه ۲۶
دَ اسرائیل دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښې لیکلي دِي
۲۷ او دَ عزریاه بادشاه دَ یهوداه په دوپنځوسم کال فقح ۲۷
بن رملیاه په اسرائیل باندِ په سامره کښې شل کاله بادشاهي
وکړه ۲۸ او ده دَ خداوند په سترګو کښې بدي وکړه او له خطاؤ ۲۸
دَ یارابعام زوي دَ نباط چه اسرائیل ئي پري خطا کار کړِ لري
نه ګرزیده ۲۹ دَ فقح بادشاه دَ اسرائیل په ورځو کښې تغلث ۲۹
فلاسر بادشاه دَ آشور ورغي او عیون او ابل بیت معکاه او
یانوح او قدش او حاصور او جلعاد او جلیله ټوله زمکه دَ
نفتالي ئي واخستل او دوي ئي په بند اشور ته بوتلل ۳۰ او ۳۰
هوشع زوي دَ ایله په فقح بن رملیاه فتنه انګیزي جوړه کړه او
وئي واهه او مړ ئي کړِ او دَده په ځاي ئي بادشاهي وکړه به
شلم کال دَ یوثام بن عزریاه ۳۱ او نوري خبري دَ فقح او هرڅه ۳۱
چه ده وکړل ګوره هغه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو دَ روزنامي
په کتاب کښې لیکلي شوي دِي ۳۲ او فقح بن رملیاه بادشاه دَ ۳۲
اسرائیل په دریم کال یوثام بن عزریاه دَ یهوداه بادشاهي وکړه
۳۳ او چه دَي بادشاه کیده نو دَ پنځه ویشتو کالو وه او شپاړس ۳۳
کاله ئي په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نوم یروشا
لور دَ صادوق وه ۳۴ او ده هغه کول چه دَ خداوند په سترګو ۳۴

کښې راست وُو لکه ټول کار چه دَ هغه پلار عزرياه وکړل وئي
۳۵ کړل ۳۵ تش لوړ مکانونه لا تر اوسَ پوري لري کړي شوي نه وُو
هغه اُمّت به په لوړو مکانونو ذبحي کولي او بخور به ئي سيزل
۳۶ اودَ بيتِ يهوه هغه عليونه دروازه بنا کړه ۳۶ او نوري خبري
دَ يوثام او هرڅه چه ده وکړل هغه دَ اسرائيل دَ بادشاهانو
۳۷ دَ روزنامي په کتاب کښې ليکلي شوي نه دي څه؟ ۳۷ په دغو
ورځو کښې خداوند شروع وکړه چه رضين بادشاه دَ ارام او فقح
۳۸ بن رملياه په يهوداه واستوي ۳۸ او يوثام له خپلو پلرونو سره
څملاست او دَده دَ پلار داؤد په ښهر کښې ښخ کړي شه
او احاز دَده زوي دَده په ځاي بادشاهي وکړه ✦

# شپاړسم باب

۱ ۱ په اوه لسم کال دَ فقح زوي دَ رملياه آحاز زوي دَ يوثام
۲ بادشاه دَ يهوداه بادشاهي وکړه ۲ او احاز چه بادشاه شه
دَ شلو کلونو وه او شپاړس کاله ئي په اورشليم کښې بادشاهي
وکړه او ده دَ خداوند الله په سترګو کښې داسي راستي
۳ و نه کړه لکه داؤد دَده پلار ۳ بلکه دَ اسرائيل دَ بادشاهانو
په لاري لاړ شه تر دي حده چه ده دَ هغو غير قومونو دَ
مکروهاتو په موافق چه خداوند دَ بني اسرائيل له وړاندِ وشړل
۴ خپل زوي ئي په اور کښې تير کړ ۴ او ده په لوړو مکانونو او
په غونډو او تر هري شني ونې دَ لاندِ ئي ذبحي کولي او خوشبوي
۵ ئي سوزولي ۵ نو رضين دَ ارام بادشاه او فقح بن رملياه بادشاه
دَ اسرائيل اورشليم ته دَ جنګ کولو دَپاره وختل په احاز
۶ باندِ ئي قلعبندي وکړه مګر پرِ غالب کيدلي نه شول ۶ په دغه
وقت کښې رضين بادشاه دَ ارام ايله ارامیانو ته وګرزوله

او یهودیان ئې له ایلت نه وویستل او ارامیان ایلت ته راغلل او هلته
مقیم شول تر دې ورځې پورې ٧ او احاز تغلث پلاسر بادشاه ٧
دَ اشور ته قاصدان واستول ویل ئې چه زه ستا مرئې او ستا
زوی یم راوخیژه او دَ ارام بادشاه له ورغوي نه او دَ اسرائیل
دَ بادشاه له ورغوي نه چه راباندِ ختلي دِي خلاص مِ کړه ٨ نو ٨
احاز هغه سپین او سره زر چه دَ خداوند او دَ بادشاه دَ
کور په خزانې کښ مندلي شوي وُو واخستل او دَ اشور بادشاه
ته ئې پیشکش واستول ٩ او دَ اشور بادشاه دَده واوریدل او دَ ٩
اشور بادشاه دمشق ته وختو او و ئې نیوه او قیر ته ئې په
جلاوطنۍ بوتلل او رضین ئې مړ کړو ١٠ او احاز بادشاه دَ تغلث ١٠
پلاسر بادشاه ملاقات ته دمشق ته ورغي او مذبح چه په
دمشق کښ وه و ئې لیده نو احاز بادشاه اوریاه کوهین ته
صورت دَ هغې مذبح او دَ هغې نقشه موافق دَ ټولې کاریګرۍ
دَ هغې واستول ١١ او اوریاه هغې کوهین یوه مذبح موافق دَ ١١
هر هغه څه چه احاز بادشاه له دمشق ور واستول بنا کړه
هم هغه شان اوریاه هغې کوهین بنا کړه تر هغه پورې چه
احاز بادشاه له دمشق راته ١٢ او چه بادشاه له دمشق راغي ١٢
نو هغه مذبح ئې ولیده او هغه بادشاه هغې مذبح ته نژدې
شه او ورباندِ ئې وخیژولي ١٣ نو ده په هغې باندِ خپلې دَ ١٣
سوزولو قربانۍ او دَ خپلې هدیې قربانۍ ئې وسوزولې او توییدنه
ئې تویې کړې او دَ سلامتۍ دَ ذبیحې وینې چه په ده وې په مذبح ئې
چړکاؤ کړې ١٤ او دَ زیړو مذبح چه دَ یهوه دَ وړاندِ وه دَ ١٤
بیت له مخې نه دَ مذبح له مینځ او دَ بیت یهوه له مینځ ئې رانژدې
کړه او دَ مذبح په څنګ ئې کینښوده شمالې خوا ته ١٥ او احاز ١٥
بادشاه اوریاه هغه کوهین ته حکم وکړو و ئې ویل چه په

لوي مذبح باندِ دَ صباح دَ سوزلو قرباني او دَ نماښام دَ هديي
قرباني او دَ هديي قرباني او دَ ټولي زمکي دَ أُمت دَ سيزلو له
قربانئِ سره او دَ دوي دَ هديي له قربانئِ سره او دَ دوي تويونکي
وسوزوه او ټولي ويني دَ سوزولو دَ قربانئِ او ټولي ويني دَ
ذبيحي ورباندِ چنړکاؤ کوه او دَ زيړو مذبح دِ څما دَ تحقيقات
۱۶ دَپاره وِي ۱۶ او اورياه هغه کوهين موافق دَ هر هغه څه چه
۱۷ هغه ته بادشاه احاز حکم ورکړ وکړل ۱۷ او هغه بادشاه احاز
دَ کرسيو ډالونه پريکړل او ورنه له پاسه ئي حوض لري کړ
او دَ زيړو له غوايانو نه ئي درياب چه تر لاندِ وُو کوز کړ او
۱۸ دَ کاڼړو په فرش ئي کيښود ۱۸ او دَ سبّت دهليز چه دوي په
کور کښ بنا کړي وه او دَ بادشاه دَ راننه وتو لار چه دَ باندِ
وه په بيت يهوه کښ ئي را وګرزوله دَ اشور دَ بادشاه له
۱۹ مخي نه ۱۹ او نور کارونه دَ احاز او هر هغه چه ده وکړل هغه
دَ يهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښ ليکلي شوي
۲۰ نه دِي څه ؟ ۲۰ او احاز له خپلو پلرونو سره څملاست او دَ داؤد
په ښهر کښ له خپلو پلرونو سره ښخ کړي شه او دَ ده
زوي حزقياه دَ ده په ځاي بادشاهي وکړه ❊

او د بادشاه د سېزلو

# اوه لسم باب

۱ ۱ په دوه لسم کال دَ احاز بادشاه دَ يهوداه هوشيع زوي دَ
ايله په سامره کښ په اسرائيل نهه کاله بادشاهي وکړه -
۲ ۲ او ده دَ خداوند په سترګو کښ هغه بدِي وکړه مګر نه لکه
۳ دَ اسرائيل بادشاهانو چه له ده نه وړاندِ وُو ۳ او شلمنصر
بادشاه دَ اشور په ده باندِ وخوت او هوشيع دَ ده مريي
۴ شه او ده ته ئي پيشکشي ورکوله ۴ او دَ اشور بادشاه په

هوشیع کښې فتنه ومونده ځکه چه ده دَ مصر بادشاه سوا
ته قاصدان واستول او لکه دَ کال په کال دَ اَشور بادشاه
ته ئې پیشکشې ادا نه کړه نو دَ اشور بادشاه هغه گرفتار کړ
او دې ئې دَ زندان په کور کښې بندې کړ ٥ او دَ اَشور بادشاه ٥
په ټولې زمکې وخوت او سامرې ته وخوت او هغه ئې درې کاله
تنګ کړه ٦ او دَ هوشیع په نهم کال دَ اَشور بادشاه سامریه ٦
بندې کړله او اسرائیل ئې اشور ته جلاوطنې کړه او په حلح او
حابور چه په نهر جوزان دې او دَ مادې په ښهرونو کښې ئې
واستول ٧ او داسې وشول ځکه چه بنې اسرائیل دَ خداوند الله ٧
خپل خطا وکړه هغه چه له زمکې دَ مصر دَ فرعون بادشاه دَ
مصر دَ لاس تر لاندې نه ئې راوخیژول او دوې دَ نورو خدایانو ویره
وکړه ٨ او دَ هغو غیر قومونو په حکمونو لاړل چه خداوند دَ ٨
بنې اسرائیل له وړاندې وشړل او دَ اسرائیل دَ بادشاهانو چه
دوې جوړ کړل ٩ او بنې اسرائیل دَ خداوند الله خپل په خلاف ٩
په پټه سره داسې خبرې کولې چه سمې نه وې او په ټولو ښهرونو
خپلو کښې او لوړو ځایونو ئې بنا کړل دَ نګاهبانانو له برج نه
تر محکمه ښهرَ پورې ١٠ او دَ خپلو ځانونو دَپاره سنې او اشیرونه ١٠
ودرول په هرې لوړې غونډۍ باندې او تر هرې شنې ونې دَ لاندې
١١ او هلته ئې په ټولو لوړو ځایونو باندې خوشبوئې سوزولې دَ هغو ١١
غیر قومونو په موافق چه خداوند دَ دوې له مخې نه جلاوطنې
کړل او بدې خبرې ئې وکړلې چه خداوند قهر ته ولمسوې ١٢ او ١٢
دَ هغو بتانو عبادت ئې وکړ چه دَ هغو په باب خداوند دوې
ته ووېل چه دا خبره مه کوئ ١٣ او خداوند په اسرائیل او په ١٣
یهوداه په لاس دَ خپلو ټولو نبیانو او دَ ټولو رؤیا لیدونکو
شاهدې وکړه ویل ئې چه له بدو لارو را وګرځئ او ځما فرضونو

اوخما حکمونو دَ هغه ټول تورات په موافق چه ستاسو پلرونو
ته مِ و فرمایل او هغه چه ما تاسو ته دَ خپلو بندګانو نبیانو
۱۴ په لاس واستول وساتئ ۱۴ او دوي وا نه وریدل بلکه سخت
گردن کبني ئي لکه دَدوي دَ پلرونو غاړه وکړه هغو چه په خداوند
۱۵ خپل الله ئي ایمان را نه وړ ۱۵ او دوي دَده حکمونه او هغه وعده
چه ده دَدوي له پلرونو سره وکړه او دَده شاهدي چه دوي
پرِ شاهدي وکړه رد کړل او په باطلو پسي لاړل او دوي باطل
شول او دَ هغو قومونو پیروي ئي وکړه چه له دوي چاپیره وُو
چه خداوند دوي ته فرض کاوه چه دَ هغو په شان مه کوئ
۱۶ ۱۶ او دوي ټول فرضونه دَ خداوند الله خپل ئي پرېښودل او دَ
خپلو څانونو دَپاره ئي وِیلي کړي شوي دوه سخي جوړ کړل او
اشیران ئي جوړ کړل او ټول فوځ دَ آسمانونو ته ئي سجده وکړه
۱۷ او دَ بعل عبادت ئي وکړ ۱۷ او خپل ځامن او لونړه ئي په اور
کبنس تیر کړل او دَ غیب گوئي قسمونه ئي وکړل او جادوګري ئي
وکړه او دَ بدئ دَ کار کولو دَپاره ئي دَ خداوند په سترګو کبنس
۱۸ خپل څانونه خرڅ کړل چه دي قهر ته ولمسوي ۱۸ نو خداوند په
اسرائیل باندي ډیر ډیر خپه شه او له حضورَ خپلَ ئي لري کړل
۱۹ چه ورته هیڅوک بیخي پاتي نه شول ټش فرقه دَ یهوداه ۱۹ او
یهوداه هم دَ یهوه الله خپل فرضونه و نه ساتل بلکه دوي
۲۰ دَ اسرائیل په هغو حکمونو لاړل چه دوي ئي جوړ کړل ۲۰ نو
خداوند ټول نسل دَ اسرائیل رد کړ او ذلیل ئي کړ او دَ لوټیرو
په لاس ئي ورکړل څو چه ئي له خپل حضور نه وغورزول -
۲۱ ۲۱ او ده اسرائیل دَ داؤد له کور نه وشلاوه او دوي یارابعام
بن نباط بادشاه کړ او یارابعام اسرائیل دَ خداوند له پیروي
۲۲ کولو نه وراته او دوي ئي په لویو خطاؤ خطاکار کړل ۲۲ او

بني اسرائيل په هغو ټولو خطاؤ دَ يارابعام چه ده وکړي لاړل او
۲۳ وِرنه لرې نه شول ۲۳ ترڅو چه خداوند دوي له حضوره خپل
لرې کړل لکه چه ده دَ خپلو ټولو بندګانو نبيانو په لاس کلام
وکړو نو اسرائيل له خپلې خاورې له پاسه آشور ته جلاوطنې
کړې شول تر نن ورځې پورې
۲۴ ۲۴ او دَ آشور بادشاه له بابلَ او له کوث او له عوّه
او له حماتَ او له سفروايم نه خو بوتلل او په ښهرونو دَ
سامره کښې ئې کښينول دَ اسرائيل په ځاي کښې او دوي دَ
سامريه وارثان شول او دَ هغه په ښهرونو کښې و اوسيدل
۲۵ ۲۵ او داسې وشول دَدوي دَ هلته اوسيدلو په شروع کښې چه
دوي له يهوه نه ويريدل او يهوه په دوي باندِ زمرې واستول
۲٦ او هغه په دوي قاتلان وُو ۲٦ او دوي دَ آشور بادشاه ته
خبره وکړه ويل ئې چه هغوي چه تا جلاوطنې کړې دي او دَ سامريه
په ښهرونو کښې دِ اوسولِي دي دَ هغې زمکې دَ الله په طريقې
نه پوهيږي او ده په دوي باندِ مزرې واستول اوګوره دغه
دوي مره کوي ولې چه دوي دَ هغې زمکې دَ الله طريقې نه پوهيږي
۲۷ ۲۷ او دَ آشور بادشاه و فرمايل ويل ئې چه له هغو کوهينانو
چه له هغه ځاي نه مو جلاوطنې کړې دي يو هلته ورو ليږئ
او هغه به لاړ شي او هلته به و اوسي او دوي ته به دَ هغې
۲۸ زمکې دَ الله طريقې ورزده کړي ۲۸ نو دوي يو له هغو کوهينانو چه
له سامرې نه ئې جلاوطنې کړې وه راغې او په بيتِ ايل کښې
و اوسيده او دوي ته ئې ورزده کړل چه څرګ به دَ يهوه
۲۹ ويره وکړي ۲۹ او په دې هم هر قوم خپل خپل خدايان جوړ
کړل او په هغو لوړو ځايونو کښې ئې کيښودل چه هغه سامريانو
جوړ کړې وُو هر يوه قوم په خپلو ښهرونو کښې چه دوي په کښې

۳۰ اوسیدل ۳۰ نو دَ بابِل کسانو سکوت بنوت جوړ کړ او دَ کوت کسانو
۳۱ نرجل جوړ کړ او دَ حمات کسانو اشیما جوړ کړ ۳۱ او عویانو نِبحز
جوړ کړ او ترتاق او سفرویمانو به خپل زامن په اور کښ سوزول
۳۲ ادرملک او عنملک ته چه دَ سفروایم خدایان وُو ۳۲ نو دوي
دَ یهوه ویره کونکي شول او دوي به دَ خپلو ځانو دَپاره دَ هغو
له اطرافو دَ لوړو مکانونو کوهینان جوړول او هغو به دَ دوي
۳۳ دپاره په لوړو ځایونو کښ قرباني کولي ۳۳ دوي دَ یهوه ویره
کونکي شول او دَ خپلو خدایانو عبادت کونکي شول دَ هغو
قومونو دَ عادت په شان چه دوي ئې له هلته نه جلاوطني
۳۴ کړي وُو ۳۴ ترنن ورځي پوري لکه دَ اوّلو عادتونو کارکونکي
دِي نه دَ یهوه ویره کونکي او نه دَ هغو دَ خپلو حکمونو او دَ
هغو دَ رسمونو په موافق عمل کونکي دِي او نه دَ هغه دَ توریت
او دَ فرضونو په موافق چه یهوه بني یعقوب ته و فرمایل هغه
۳۵ چه دَده نوم ئې اسرائیل کینبود ۳۵ او یهوه دَ دوی سره وعده
وکړه او ورته ئې و فرمایل ویل ئې چه تاسو دَ نورو خدایانو
ویره مه کوئِ او سجده ورته مه کوئِ او عبادت ئې مه کوئِ
۳٦ او ذبحه ورته مه کوئِ ۳٦ بلکه دَ هغه یهوه ویره کوئِ چه
تاسي ئې دَ مصر له زمکي نه په لوي قوّت او په اوږده کړي
بازو را وخیژولِي هم له هغه ویره کوئِ او دغه ته سجده کوئِ
۳۷ او دغه ته ذبحه کوئِ ۳۷ او هغه حکمونه او عدالتونه او
توریت او فرضونه وساتئِ چه ده تاسو لره ولیکل چه تاسي
به هغه باندِ تل ورځي دَ کارکولو دَپاره وساتئِ او دَ نورو
۳۸ خدایانو ویره مه کوئِ ۳۸ او هغه وعده مه هیروئِ چه ما
۳۹ در سره وکړه او دَ نورو خدایانو ویره مه کوئِ ۳۹ بلکه له
یهوه الله خپل ویره کوئِ نو هغه به مو ستاسي دَ ټولو

۴۰ دُښمنانو له لاسونو راکاږي ۳۹ او هغه وانه وريدل بلکه هسي
۴۱ لکه دَ خپل اول عادت په شان ئې وکړل ۴۱ او دغه قومونه دَ
يهوه ويره کونکي وُو او دَ خپلو تراشلي بتانو عبادت کونکي
وُو هم دَدوئ زامن او دَ زامنو زامن ئې لکه چه دَدوئ
پلرونو وکړل هم هسي دوي تر نن ورځي پوري کار کونکي دِي ❊

# اته لسم باب

۱ آ او داسي وشوه چه دَ يهوشع بن ايله بادشاه دَ اسرائيل
په دريم کال حزقياه زوي دَ احاز بادشاه دَ يهوداه بادشاهي
۲ وکړه ۲ او ده په خپل بادشاه کيدلو کښ دَ پنځه ويشتو کلونو
وه او ده په اورشليم کښ نه ويشت کاله بادشاهي وکړه او
۳ دَده دَ مور نوم ابي وه لور دَ زکرياه ۳ او ده دَ خداوند
په سترګو کښ راست کار وکړ موافق دَ هر هغه څه چه دَده
۴ پلار داؤد وکړل ۴ او ده لوړ ځايونه لري کړل او بتان ئې مات
کړل او اشيره ئې پريکړل او هغه دَ زيړو مار چه موسیٰ جوړ
کړي وه ټوټ ټوټ ئې کړ ځکه چه بني اسرائيل تر دغو ورځو
پوري هغه ته خوشبوئي سوزونکي وُو او هغه ئې نحوشتان
۵ وباله ۵ او ده په يهوه الله دَ اسرائيل توکّل کاوه او پس له
ده نه په ټولو بادشاهانو دَ يهوداه کښ دَده په شان نه وُو
۶ او نه په هغو کښ چه له ده وړاندي وُو ۶ او دئ په خداوند
نښتلي وه او ورنه لري نه شه بلکه هغه فرضونه ئې وساتل
۷ چه خداوند موسیٰ ته پري فرض کړه ۷ او خداوند ورسره
وه او چرته چه به ووت کامياب کيده به او دَ آشور بادشاه
۸ نه ئې ياغي توب وکړ او دَ هغه خدمت ئې نه کاوه ۸ او ده
فلسطيان و وهل تر غزه پوري او دَ هغه تر سرحدونو دَ نګهبانو

له برج نه تر محکم ښهر پورې وُو
۹ ۹ او دَ حزقیاه بادشاه په څلورم کال او دغه اوم کال دَ
یهوشع بن ایله بادشاه دَ اسرائیل وه داسې وشوه چه دَ اشور
۱۰ بادشاه شلمنصر په سامریه وخوت او هغه ئې حصار کړ ۱۰ او
دَ دریو کالو په آخر کښ ئې واخست او دَ حزقیاه په شپږم
کال چه دغه نهم کال دَ هوشع بادشاه دَ اسرائیل وه سامریه
۱۱ واخستلې شوه ۱۱ او دَ آشور بادشاه اسرائیل وَ اشور ته جلاوطنې
کړل او په حلح او په حابور چه دَ جوزان رود څنګه دې او دَ
۱۲ مادیانو په ښهرونو کښ ئې واچول ۱۲ څکه چه دوي دَ یهوه
الله خپل آواز وانه وریده بلکه دَده له وعدې نه تیر شول او
هرڅه چه موسیٰ بند دَ یهوه ور ته وِ فرمایل او دوي وانه
وریدل او نه ئې وکړل
۱۳ ۱۳ او په څوارلسم کال دَ حزقیاه بادشاه سنحاریب بادشاه
دَ آشور په ټولو محکمو ښهرونو دَ یهوداه وخوت او هغه
۱۴ ئې ونیول ۱۴ او حزقیاه بادشاه دَ یهوداه دَ آشور بادشاه ته
لخیش ته واستاوه وَ ئې ویل چه ما خطا کړې دَه له ما نه وجاروزه
او هرڅه چه په ما ږدې هغه بار به وسهیږم نو دَ آشور
بادشاه په حزقیاه بادشاه دَ یهوداه باندِ درې سوه قنطاره
۱۵ سپین زر او دیرش قنطاره سره زر کیښودل ۱۵ او حزقیاه
هغه ټول سپین زر چه په بیت یهوه او دَ بادشاه دَکور په
۱۶ خزانو کښ وُو ورکړل ۱۶ چه په دغې موذې کښ حزقیاه دَ خداوند
دَ هیکل له دروازو او له هغو ستنیو چه حزقیاه بادشاه
دَ یهوداه جوړې کړې او آرایش کړې وې وتوړل او دَ آشور
۱۷ بادشاه ته ئې ورکړل ۱۷ او دَ آشور بادشاه ترتان او ربصاریص
او ربشاقې له لخیش نه حزقیاه ته له دروند لښکر سره اورشلیم

ته واستول او دوي وختل او اورشليم ته راغلل او چه دوي
وختل ورغلل دَ پاسني تالاو ويالي تهه چه دَ دوبيانو دَ
۱۸ پتئي په شاه راه دي ودريدل ۱۸ او دوي بادشاه وباله او
دوي ته الياقيم بن حلقياه چه په کور باندِ وه او شبنه کاتب
۱۹ او يوآخ بن آسف واقع نويس وروتل ۱۹ او دوي ته ربشاقي
وويل چه تاسي حزقياه ته ووايئ چه لوي بادشاه دَ آشور بادشا
۲۰ داسي وايي چه هغه کوم توکّل دَي چه ته پري توکّل کوي ۲۰ ته
وايي مگر هغه دَ شونډو خبري دِي چه دَ جنگ دَپاره مصلحت
او قوّت لرم او اوس ته په چا توکّل کوي؟ چه له ما نه ياغي
۲۱ شوي يي ۲۱ او اوس گوره ته خو په هغي رچي کري شوي همسا
دَ درمي تکيه کوي يعني په مصر باندِ په دغه که سري پرِ تکيه
وکري نو په ورغوي کښ به ئي ننه وزي او سوري به ئي کري
هم هسي فرعون بادشاه دَ مصر دَ هغو ټولو دَپاره چه په دَ
۲۲ تکيه کوِي ۲۲ او که تاسي راته ووايئ چه مونږ په يهوه الله
خپل توکّل لرو نو دا هغه نه دَي څه؟ چه حزقياه دَده لور
مکانونه او دَده مذبحونه لري کري دِي او يهوداه او اورشليم
ته ئي و ويل چه تاسي دَدي مذبح دَ وړاندِ په اورشليم کښ
۲۳ سجده کوئ؟ ۲۳ او اوس خما خاوند دَ آشور بادشاه ته
گروُونه ورکره او زه به تاته دوه زره آسونه درکرم که چري
۲۴ ته په هغه باندِ سواره ورکولي شي ۲۴ نو ته به څرنگ خما
دَ خاوند له مريونو دَ يوه وړوکي صوبه دار مخ وگرزولي شي
او دَ گاډيو او دَ سوارو دَپاره په مصر باندِ دَ خان دَپاره تکيه
۲۵ کوي ۲۵ او اوسِ زه بغير له هغه يهوه په دي ځاي راختلي
يم څه؟ چه خراب ئي کرم هغه يهوه راته وويل چه په دي
زمکه وخيژه اوخرابه ئي کره

٢٦ ٢٦ نو الياقيم زوي دَ حلقياه او شبنه او يواخ ربشاقي
ته وويل چه ته له خپلو مريونو سره په آرامي ژبي خبري
کوه ځکه چه مونږ پـــــوي پوهيږو او له مونږ سره په
يهودِي ژبي دَ هغو خلقو په غوږونو کښ چه په ديوال باندِ
٢٧ دِي خبري مه کوه ٢٧ نو ربشاقي دوي ته وويل چه څما
خاوند ^ او په تا باندِ زه راستولي يم چه په دي خبري سره
درسره خبري وکړم څه ؟ او په هغو کسانو باندِ ئي نه يم راستولي
څه ؟ چه په ديوال باندِ ناست دِي چه دوي له تا سره خپل
٢٨ غُل وخورِي او خپلي متيازي وڅښي ٢٨ او ربشاقي ودريده او
په لوي آواز ئي په يهودِي ژبي نعره وکړه او خبره ئي وکړه
٢٩ ويل ئي چه تاسي دَ لوي بادشاه خبره واوريِ ٢٩ هغه بادشاه
داسي وائي چه تاسي دِ حزقياه و نه غولوِي ځکه چه دَي به
٣٠ و نه توانيږي چه تاسي دَ هغه له لاسه خلاص کړي ٣٠ او
حزقياه دِ تاسي په يهوه توکّل کونکِي و نه کړزوِي چه وائي
چه يهوه به مونږ په کارِلو سره خلاص کړي او دا ښهر به
٣١ دَ اشور دَ بادشاه لاس ته ورکړي نه شي ٣١ تاسي دَ حزقياه
مه اوريِ ځکه چه دَ آشور بادشاه داسي وائي چه له ما سره
برکت وکړئِ او ما ته راووزئِ او سړي دِ له خپل تاکستانَ او
سړي دِ له خپل انځيره وخورِي او هر يو سړي دِ دَ خپل
٣٢ کوهي اوبه وڅښي ٣٢ تر هغه پوري چه زه راشم او تاسي يوي
زمکي ته لکه چه ستاسو زمکه ده بوزم دَ غلو او دَ شيرو
زمکه دَ ډوډئ او دَ تاکستانونو زمکه دَ زيتون دَ تيلو او
دَ ګبينو زمکه چه تاسي ژوندِي اوسئ او مړه نه شئ او دَ
حزقياه مه اوريُ چه تاسو لمسوِي وائي چه يهوه به موخلاص
٣٣ کړي ٣٣ کله دَ قومونو له خدايانو نه چا سړي خپله زمکه دَ اشور دَ بادشاه

^ ستاله خاوند

۳۴ له لاسه به راکاړلو خلاص کړي ده څه ؟ ۳۴ دَ حمات او دَ
ارفاد خدايان چرته دِي دَ سفروايم او دَ هينع او دَ عوا خدايان
چرته دِي چه هغو سامريه زما له لاسه خلاصه کړي دَه
۳۵ څه ؟ ۳۵ له ټولو خدايانو دَ زمکي څوک دي چه خپله زمکه ئې
زما له لاسه خلاصه کړي دَه چه يهوه به اورشليم زما له
۳۶ لاسه خلاص کړي ۳۶ او اُمّت پټه خوله وه او دَ يوي خبري
ځواب ئې نه ورکاوه ځکه چه فرمان دَ بادشاه داسي وه وېلي
۳۷ ئې چه ځواب مه ورکوئ ۳۷ نو الياقيم ځوی دَ حلقياه چه په کور
بانډِ وه او شبنه کاتب او يوآخ ځوي دَ آساف واقع نويس
خزقياه ته راغلل او جامي ئې څيري کړي شوي او دوي دَ
ربشاقي خبري ورڅرګندي کړي ؛

# نولسم باب

۱ ۱ او چه حزقياه بادشاه دا خبره واوريدله نو خپلي جامي ئې
څيري کړي او شيړئ ئې واغوستله او بيت يهوه ته ننه وت
۲ ۲ او الياقيم چه په کور بانډِ وه او شبنه کاتب او دَ کوهينانو
سپين ږيري په شړئ پوشيده کړي شوِي ئې اشعياه نبي بن
۳ آموص ته واستول ۳ او هغو ده ته وويل چه حزقياه داسي
وايي چه نن ورځ دَ تنګئ او دَ ټوټي او دَ سپکي ويلو ورځ
ده ځکه چه بچي له کيدي وتلو ته راغلي دِي او دَ زيږولو
۴ قوّت نشته ۴ بنائي چه يهوه ستا الله ټولي خبري دَ ربشاقي
اوريِ هغه چه دَ اشور بادشاه هغه خاوند ئې راستولی دَی
چه په حيّ الله پيغور وکړي او په هغو خبرو چه يهوه
ستا الله اوريدلي دِي ترټنه وکړي نو ته دَ هغه باقيه
۵ دَ پاره چه موجود دِي په دُعا آواز پورته کړه ۵ نو دَ حزقياه

٦ بادشاه مريونه اشعياه ته ورغلل ٦ او دوي ته اشعياه وويل
چه تاسي خپل خاوند ته داسي ووايئ چه يهوه داسي
ويلي دي چه ته دَ هغو خبرو په سبب چه اوريدلي دِ
دِي مه ويريږه هغه چه ماته دَ آشور دَ بادشاه نوکرانو
٧ ماته پري کفر ويلي دي ٧ گوره چه زه به په هغه کښ يو
روح کيږدم او دي به يوه خبره واوري او خپلي زمکي ته به
وجاروزي او زه به ئې په هغي زمکي کښ په توري پريباسم
٨ ٨ او ربشاقي وجاروت او دَ آشور بادشاه ئې وموند
چه په لبنه جنگيده ځکه چه ده واوريده چه هغه له لخيش
٩ نه کوچ وکړ ٩ او دَ تورهاقه بادشاه دَ کوش خبر ئې واوريده
چه گوره ستا جنگ کولو ته وتلي دَي نو دَي وگرزيده او قاصدان
١٠ ئې حزقياه ته واستول و ئې ويل ١٠ چه تاسي حزقياه بادشاه دَ
يهوداه ته خبره وکړئ ووايئ چه ستا الله چه ته په ده کښ
توکّل کوي تا دِ و نه غولوي چه در ته وايي چه اورشليم به دَ
١١ آشور دَ بادشاه لاس ته ور نه کړي شي ١١ تا به آوريدلي وي
چه دَ آشور بادشاهانو په ټولو زمکو څه وکړل چه بيخي ئې
١٢ حرم کړل نو ته به خلاص شي څه ؟ ١٢ دَ قومونو خدايانو
هغوي خلاص کړي دِي څه ؟ چه څما پلارونو نيست نابود کړي
١٣ دِي او بني عدن چه په تلاسار کښ وُو ١٣ دَ حمات بادشاه
او دَ ارفاد بادشاه او دَ سفروايم دَ ښهر بادشاه او دَ هينع
١٤ او دَ عوّا چرته دِي ١٤ نو حزقياه هغه خطونه دَ قاصدانو له
لاسونو واخستل او و ئې لوستل او بيتِ يهوه ته وخوت او
١٥ حزقياه دَ خداوند دَ وړاندِ وغوړول ١٥ او حزقياه دَ يهوه دَ
وړاندِ دُعا وکړه او و ئې ويل اي يهوه الله دَ اسرائيل چه
پاس په کروبين ناست يي هم ته يواځي دَ ټولو زمکو دَ بادشاهانو

جوزان او حاران او رصيف

الله يې تا آسمان او زمکه جوړ کړل ١٦ اي يهوه خپل غوږونه ١٦
مايل کړه او واوره: خپلي سترګي اي يهوه پرانزه او وګوره
او دَ سنحاريب خبري چه استولي يې دي واوره چه دَ
حَي الله پېغور کوي ١٧ دا رښتيا دَه اي يهوه چه دَ آشور ١٧
بادشاهانو قومونه او دَ دوي زمکي خراب کړي دي ١٨ او ١٨
دَ دوي خدايان يې اور ته اچولي دي ځکه چه هغه خدايان
نه وُو بلکه دَ آدم‌زاد دستکاري وُو لرګي او کاڼي نو دوي
يې برباد کړل ١٩ او اوس اي خداوند خمونږ الله دَ هغه له ١٩
لاس نه مو خلاص کړه نو به ټول بادشاهتونه دَ زمکي پوه
شي چه هم ته هغه يواځي الله يې
٢٠ او اشعياه بن آموص حزقياه ته واستاوه ويل يې ٢٠
چه يهوه دَ اسرائيل الله چه تا ور ته دَ آشور دَ بادشاه
سنحاريب په باب دُعا وکړه داسي وايي چه ما ستا اوريدلي
دي ٢١ دا هغه کلام دَي چه يهوه پري کلام کړي دَي دَ صهون ٢١
پيغلي لُور ستا سپکه کړي دَه او په تا پيښي خندلي دي او
دَ اورشليم لُور تا ته سر ښورولي دَي ٢٢ تا دَ چا پېغور کړي ٢٢
دَي او کفر دِ ويلي دي او په چا بانِدِ دِ آواز پورته کړي دَي
او تا خپلي سترګي بلندۍ ته پورته کړي دي دَ اسرائيل په
قدّوس بانِدِ ٢٣ تا دَ خپلو قاصدانو په لاس دَ خداوند ٢٣
پېغور کړي دي او وِ ويل چه زه دَ خپلو ګاډيو په کثرت
سره دَ غرونو بلندۍ ته ختلي يم او دَ لبنان ولمني ته او
زه به اوږدي لمنځي او دَ هغه غوره نښتروني پريکړم او دَ هغه
حدونه آستاني ته دَده دَ تاکستان وځنګل ته به ننوزم
٢٤ ما کنودلي دي او بيګانه اوبه مِ څښلي دي او زه به دَ ٢٤
خپلي پايي په تلو ټول دريابونه دَ قلعدارو وچ کړم ٢٥ تا به ٢٥

له وړانِدِ اوريدلي نه وِي چه ما دغه له قديمو ورځو جوړ
کړي دِي اوس مِې دا راوړل چه دَ محکمو ښهرونو دَ ويرانو
٢٦ ډيريو کيږدلو دَ پاره موجود شي ٢٦ او دَ هغه اوسيدونکي
لنده لاسي وو او ترسيدل او شرمنده شول هغوي دَ پټي دَ
وابښو په شان شول او لکه شنه زرغونکي او لکه دَ باموونو
وابښه او لکه سموم وهلي دانه وړانِدِ له نوکيدلو نه —
٢٧ ٢٧ ليکن زه ستا په قرار کښيناستلو او وتلو او ننوتلو او
٢٨ ستا په جوش چه په ما باندِ دي پوه يم ٢٨ ځکه چه ستا جوش
په ما باندِ او ستا مغروري ځما غوږونو ته وختل زه بـه
خپله نتکئ ستا په پوزي کښې او خپله ملوني ستا په شونډو
کښې کيږدم او په هغې لاري به دِ ستون کړم چه ته پرِ راغلي
٢٩ يي ٢٩ او تا لره به دا نښه وِي چه تاسي به په دي کال کښې هغه
څيزونه چه په خپله زرغونيږي خورئِ او په دويم کال کښې
دَ هغه پيدا شوِي او په دريم کال کښې وکرئ او وريبئ
٣٠ او انګور ونکوئ او ميوي يې وخورئ ٣٠ او دَ يهوداه دَ کور
خلاص شوِي چه پاتي دِي بيا به تر لاندِ پوري بيخ ونيسي او
٣١ تر پاس به ميوه ورکړي ٣١ ځکه چه له اورشليم به يوه
باقيه راووزي او دَ صيحون له غره نه هغه چه خلاص شوي
٣٢ دِي دَ لښکرو دَ خداوند غيرت به دا وکړي ٣٢ دي دَ پاره
يهوه دَ اشور دَ بادشاه په باب داسي وايي چه هغه دي
ښهر ته داخل نه شي او نه به هلته غشي وولِي او نه به
په ډالونو سره ورورانِدِ شي او نه به سنګر ورته ودروِي
٣٣ ٣٣ په کومي لاري چه راغلي دِي و به جاروزي او دي ښهر
٣٤ ته به داخل نه شي يهوه وايي ٣٤ او زه به دَ دي ښهر ساتنه
وکړم چه خلاص يې کړم دَ خپل ځان دَ پاره او ځما دَ بنده

داؤد دَپاره
۳۵ ۳۵ او په دغې شپې کښې داسې وُو چه فرښتې دَ يهوه
ورغلې او دَ اشور په ډيرې کښې يې يو لاکه او پنځه اتيا زره
سړي ووهل او چه دوي صباح وختې پورته شول گوره چه
۳۶ ټول لښونه مړي وُو ۳۶ نو دَ اشور بادشاه سنحاريب کوچ
۳۷ وکړ او لاړ او وجاروت او په نينوا کښې اوسيده ۳۷ او چه
ده دَ نسروک خداي په کور کښې سجده کوله نو آدرَمّلک او
شراصر دَده زامنو په توري وواهه اودوي دَ اراراط زمکې ته
خلاص شول او اسرحدون زوي يې دَده په ځاي بادشاهي وکړه ＊

# شلم باب

۱ آ په دغو ورځو کښې حزقياه دَ مرگ په رنځ رنځور شه او
اشعياه هغه نبي بن آموص ورغي او ورته يې وويل چه
خداوند داسي وويل چه ته خپل وصيت وکړه ځکه چه ته
۲ به ومرې او به نه پائيږې ۲ او ده خپل مخ وديوال ته واړاوه
۳ او خداوند ته يې دُعا وکړه ويې ويل ۳ آه اي خداونده ياد
کړه که نه چه زه څرنگ ستا دَ وړاندې په امانتدارۍ او په
سلامت زړه وگرزېدم او ستا په سترگو کښې مې نيکي وکړه
۴ او حزقياه په لوي ژړا وژړل ۴ او لا اشعياه دَ ښهر و مېنځ
ته ورغلې نه وه چه دَ خداوند کلام ده ته وشه ويې ويل
۵ ۵ چه وگرزه او حزقياه دَ اُمّت آمير ته ووايه چه يهوه الله
ستا دَ پلار داؤد داسې ويلي دي چه ما ستا دُعا واورېده او
ستا نيکۍ مې وليدلې گوره زه به تا ته شفا درکړم په دريمه
۶ ورځ به ته بيت يهوه ته وخيژې ۶ او زه به ستا په ورځو
پنځلس کاله زيات کړم او زه به تا او دا ښهر دَ اشور دَ بادشاه

له ورغوي خلاص کړم او دَ دي ښهر ساتنه به وکړم دَ خپل
۷ ځان دَپاره او څما دَ بنده داؤد دَپاره ۷ او اشعیاه وویل
چه دَ اِنځر ټکئ واخلئ او دوي واخستله او دَ هغه په
۸ دانې باندِ ئې کېښودله او هغه روغ شه ۸ او حزقیاه اشعیاه
ته وویل چه څه نښه به ئې وِي چه یهوه ما ته شِفا راکوِي
۹ او چه زه به په دریمه ورځ بیتِ یهوه ته وخېژم ۹ او
اشعیاه ورته وویل چه دَ یهوه له طرفَ به تا ته دا نښه
وِي چه یهوه به هغه کلام وکړِي چه ده پرې کلام وکړه یا خو
به سورَي لَس درجي په وړاندِ لاړ شِي یا به لَس درجي را
۱۰ وجاروزِي ۱۰ او حزقیاه وویل چه دا آسانه دَه چه سورَي
لَس لَس درجي اوږد شِي: نه: بلکه چه سوري لَس درجي په
۱۱ ورستو وجاروزِي ۱۱ نو اشعیاه نبي یهوه ته دُعا وکړه نو
سورَي په هغو درجو دَ کړئ دَ احاز چه پرِ کوز شوي وه
لَس درجي ورستو را وګرزېده
۱۲ ۱۲ په دغه وقت کښ برودک بلدان بن بلادان بادشاه
دَ بابل خطونه او پیشکشئ حزقیاه ته واستول ځکه هغه
۱۳ واورېدل چه حزقیاه رنځور شوي وه ۱۳ نو حزقیاه دَ هغو
خبرِي واورېدلي او ټول کور دَ ذخیرو او دَ سپینو او دَ
سرو زرو او هغه بلسان او خوشبویه تیل او ټول کور دَ
وسلو او هر څه چه دَده په خزانو کښ وموندلي شول
ورښکاره کړل داسي هیڅ شئ نه وه چه حزقیاه ورښکاره
نه کړ نه دَده په کور کښ نه دَده په ټول سلطنت کښ -
۱۴ ۱۴ نو اشعیاه هغه نبي حزقیاه هغه بادشاه ته ورغي او
ورته وئې ویل چه دَغه کسانو څه درته ویل او له کومه
درته راغلل ؟ نو حزقیاه وویل چه له لرې زمکي له بابل راغلل

۱۵ او ده ورته ووېل چه ستا په کور کښې ئې څه ولیدل ۱۵
او حزقیاه و وېل هرڅه چه څما په کور کښې وُو و ئې لیدل
داسي شئ څما په خزانه کښې نه وه چه و ئې نه لید ۱۶ نو ۱۶
اشعیاه حزقیاه ته ووېل چه دَ یهوه کلام واوره ۱۷ کوره هغه ۱۷
ورځي به راشي چه هرڅه چه ستا په کور کښې دي او هغه
چه ستا پلرونو تر نن ورځي پوري ذخیره کړي دي بابل ته
به یو وړلي شي هیڅ شئ به پرېښودلي نه شي یهوه وايي-
۱۸ او ستا له زامنو نه چه له تا ووزي او چه ته ئې وزېږوي ۱۸
و به نیولي شي او دَ بابل دَ بادشاه په محل کښې به خواجه‌سرا
وِي ۱۹ نو حزقیاه اشعیاه ته ووېل چه دَ یهوه کلام چه تا ۱۹
وېلي دئ ښه دئ بیا ئې ووېل هسې نشته څه ؟ که چرې
څما په ورځو کښې سلامتي او امان وِي ۲۰ او نوري خبري ۲۰
دَ حزقیاه او دَده ټول شاغلتوب اوچه ده څرنګ تالاب او
ناله جوړ کړل او اوبه ئې ښهر ته ننه‌باسلي دَ یهوداه دَ
بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښې لیکلې نه دي څه ؟-
۲۱ او حزقیاه له پلرونو خپلو سره څملاست او منسّي دَده ۲۱
زوي دَده په ځاي بادشاهي وکړه *

# یو ویشتم باب

۱ اوچه منسّي بادشاه شه دَ دوه‌لسو کالو وه او پنځه پنځوس ۱
کاله ئې په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نوم
حفصیبه وه ۲ او ده دَ خداوند په سترګو کښې شرارت وکړ ۲
دَ هغو غیر قومونو دَ پلیتیو په شان چه خداوند دَ اسرائیل
له مخ نه وشړل ۳ او دئ بیرته وګرزېده او هغه لوړ مکانونه ۳
ئې بنا کړه چه دَده پلار حزقیاه برباد کړي وُو او بعل ته ئې

مذبح ودراوله آشیره ئې جوړه کړه لکه چه اخیاب بادشاه دَ
اسرائیل جوړه کړه او ټول فوځ دَ آسمان ته ئې سجده وکړه او
۴ عبادت ئې ورته وکړه ۴ او په بیت یهوه کښ ئې مذبحونه جوړ
کړل چه دَ هغه په باب خداوند وویل چه زه به په اورشلیم
۵ کښ خپل نوم کیږدم ۵ او ده دَ آسمان لښکر ته دَ بیتِ یهوه په
۶ دوه غولیو کښ مذبحونه جوړ کړل ۶ اوخپل زوي ئې په اور
کښ تیر کړ او جادو گري ئې وکړه او فال بیني ئې کوله او دَ پیریانو
او دَ هوده دارانو یاري ئې وکړه او دَ خداوند په سترگو کښ
۷ ئې ډیر شرارت وکړ چه دَي په قهر کړي ۷ او دَ آشیره تراشلي
بُت ئې په هغه بیت کښ کیښود چه دَ دغه په باب یهوه
داؤد او سلیمان دَده زوي ته وُوِ چه په دې بیت کښ او
په اورشلیم کښ چه له ټولو فرقو دَ اسرائیل مِ غوره کړي
۸ دي خپل نوم به کیږدم تر ابده پوري ۸ او زه به بیا دَ اسرائیل
پښې له دې خاوري چه ما دَدوي پلرونو ته ورکړي ده و نه
خوځوم تش چه دوي دَ عمل کول وساتي موافق دَ هر هغه
شه چه ما دوي ته فرض کړي دي او دَ هغه ټول تورات چه
۹ موسیٰ بنده شما پر و فرمایل ۹ او دوي وانه وریدل او
منسّي تر دې حده پوري گمراه کړل چه دوي له هغو غیر
قومونو چه خداوند دَ بني اسرائیل له مخ نه هلاک کړل زیات
۱۰ بدکارونه وکړل ۱۰ اوخداوند دَ خپلو نبیانو په لاس خبره وکړه
۱۱ وئې ویل ۱۱ دې دَپاره چه منسّي بادشاه دَ یهوداه هغه پلیت
کارونه کړي دي او دَ هغو اموریانو له کولو نه چه له ده وړاندِ
وُو بدکاري ئې کړي دَه او یهوداه ئې هم په خپلو بتانو خطا
۱۲ کار کړ ۱۲ دې دَپاره یهوه الله دَ اسرائیل داسي وائي گوره زه
به په اورشلیم او په یهوداه آفت راوړم هومره چه هر څوک

چه دغه واورِي دواړه غوږونه به يُ وڅنګيږي ۱۳ او زه ۱۳
به په اورشليم دَ سامري مزي راکاږم او دَ اخياب دَ کور
غونډارئ او زه به اورشليم داسي صاف ومږم لکه چه څوک
کټوئ صاف ومږي او پرمخ يُ ولړي ۱۴ او زه به دَخپل ميراث ۱۴
باقيه ترک کړم او دَدوي دَ دښمنانو په لاس به يُ ورکړم نو
دوي به دَدوي ټولو دښمنانو ته يو لوټ او شوک وي -
۱۵ ځکه چه دوي هغه چه ځما په ستړګو کښ بد وه کړي دي ۱۵
او له هغي ورځي چه په کښ مِ دَدوي پلرونه دَ مصر له زمکي
راويستل تر نن ورځي پوري زه يُ په غصّه کړي يم ۱۶ او ۱۶
منسّي دَ بيګناهانو ويني هم بيحده ډيري تويي کړي دومره
چه اورشليم يُ له يوه جانبه تر بله جانب پوري ډک کړي وه
سوا دَده دَ خطا چه يهوداه يُ دَ شرارت په کولو دَ خداوند په
ستړګو کښ خطاکار کړ ۱۷ او نوري خبري دَ منسّي او هرڅه ۱۷
چه ده وکړل او هغه خطا چه ده پري خطا وکړه هغه خو دَ
يهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښ ليکلي نه دي
څه ؟ ۱۸ او منسّي له خپلو پلرونو سره څملاست او دَده دَکور په ۱۸
باغ کښ ښخ کړي شه په باغ دَ عزّا کښ او دَده په ځاي
دَده زوي امنون بادشاهي وکړه ۱۹ او چه امنون بادشاه کيده ۱۹
دَ دوويشتو کالو وه او دوه کاله يُ په اورشليم کښ بادشاهي
وکړه او دَده دَ مور نوم مشلمت لُور دَ حاروص چه دَ يطباه
وه ۲۰ او ده دَ خداوند په ستړګو کښ بدي وکړه لکه چه ۲۰
منسّي دَده پلار وکړه ۲۱ او په هغي لاري روان شه چه دَده ۲۱
پلار پري تللي وه او دَ هغو بتانو عبادت يُ کاوه چه دَده
پلار يُ عبادت کاوه او ورته يُ سجده وکړه ۲۲ او يهوه الله ۲۲
دَ پلرونو خپل يُ ترک کړ او دَ يهوه په لاري لا نه ړه ۲۳ او ۲۳

دَ امون مریونو په ده باندِ سازش وکړ او بادشاه ئې دَده
۲۳ په کور کښ مړ کړ ۲۳ او دَ زمکي اُمّت هغه ټول چه په امون
بادشاه باندِ فتنه سازان وُو قتل ئې کړل او دَ زمکي اُمّت
۲۵ یوشیاه دَده زوي ئې دَده په ځاي بادشاه کړ ۲۵ او نوري
خبري دَ آمون او هرڅه چه ده وکړل هغه څو دَ یهوداه دَ
۲۶ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښ لیکلي نه دِي څه؟ ۲۶ او
هغه په خپل قبر کښ دَ غزا په باغ کښ ښخ کړي شه او دَده
زوي یوشیاه دَده په ځاي بادشاهي وکړه ✠

# دوه ویشتم باب

۱ ۱ او چه یوشیاه بادشاه کیده دَ آتو کالونو وه او ده یودیرش
کاله په اورشلیم بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نُوم یدیده
۲ لُور دَ عدایه چه دَ بُخقه وه ۲ او ده دَ خداوند په سترګو
کښ راستي وکړه او په ټولو لارو دَ داؤد پلار خپل کښ لاړ
شه او په ښي او په چپ لوري ورنه وا نه وښت
۳ اوداسي وشول په اته لسم کال دَ یوشیاه بادشاه نو بادشاه
شافان زوي دَ اځلیاه زوي دَ مشلام کاتب بیت یهوه ته
۴ واستاوه و ئې ویل ۴ چه ته خلقیاه لوي کوهین ته وخیژه
چه دې هغه سپین زر چه په بیتِ یهوه کښ داخل کړي شوي
دِي تمام وشمیرِي او هغه چه دَ آستانې ساتونکو له اُمتَ
۵ جمع کړي دِي ۵ او هغه دِ دَ کاردارانو په لاسونو باندِ ورکړي
چه دَ بیت یهوه کارداران بازخواستان دِي او هغه دِ هغو
کاردارانو ته ورکړي چه په بیت یهوه کښ دَ چاودونو مرمت
۶ کوِي ۶ ترکاڼانو ته او معمارانو ته او سنګتراشانو ته او دَ
لرګو او دَ تراشلو کاڼو دَ پیرودلو دَپاره دَ بیت دَ مرمّت

کولو دَ پاره ۷ مګر دَ دوي سره دَ هغو سپينو زرو چه دَ ۷
هغو په لاسونو ورکولي شي حساب کړي نهٔ شه ځکه چه دوي
په امانتدارئ کار کاوه ۸ او خلقياه بزرګ کوهين شافان کاتب ۸
ته وويل چه په بيت يهوه کښې ما دَ هغه **تورات** کتاب
وموند او خلقياه هغه کاتب شافان ته وسپاره او هغه
ولوست ۹ او شافان هغه کتاب بادشاه ته ورغي او بادشاه ۹
ته ئي خواب بيا وروړ او وئي ويل چه ستا مريونو هغه سپين
زر چه په بيت کښې مندلي وُو توي کړل او دَ هغو کاردارانو
په لاس باندِ چه دَ بيت يهوه بازخواستان دِي ورئي کړل ۱۰ او ۱۰
شافان هغه کاتب بادشاه ته څرګنداوه وئي ويل چه خلقياه
کوهين ما ته يو کتاب راکړي دِي او شافان هغه دَ بادشاه دَ
وړاندِ ولوست ۱۱ او چه بادشاه دَ هغه تورات دَ کتاب ۱۱
کلامونه وأوريده نو جامي خپلي ئي وشلولي ۱۲ او بادشاه خلقياه ۱۲
کوهين او اخيقام زوي دَ شافان او عکبور زوي دَ ميخاياه او
شافان هغه کاتب او عساياه ته چه دَ بادشاه مريي وه حکم
ورکړو وئي ويل ۱۳ چه لاړ شئ يهوه ته ځما دَ پاره او دَ اُمّت ۱۳
دَ پاره او دَ ټول يهوداه دَ پاره سوال وکړئ دَ دي کتاب دَ
کلام په باب چه وموندلي شه ځکه چه لوي دي هغه غضب
دَ خداوند چه په مونږ باندِ بل شوي دي دَ پاره چه ځمونږ
پلرونو دَ دي کتاب کلامونه وانه وريدل تا چه دوي عمل
وکړي په موافق دَ هر هغه څه چه په مونږ باندِ ليکلي شوي
دِي ۱۴ نو خلقياه هغه کوهين او اخيقام او عکبور او شافان ۱۴
او عساياه خلده هغه نبي ښځي دَ شلوم بن تقواه بن حرحس
چه دَ جامو داروغه وه ورغلل او دا په اورشليم کښې په
دويم ويش کښې اوسيدله او خبري ئي ورته وکړې ۱۵ او ۱۵

دَيْ هغو ته و ویل چه یهوه الله دَ اسرائیل داسي ویلي دِي
چه هغه سړي ته چه تاسوئي ما ته را استولي يئ ووايئِ -
۱۶ ۱۶ چه یهوه داسي وايي گوره زه به په دي ځاي او دَ دغه
په اوسیدونکو باندِ بلا راکابږم موافق دَ هغه ټول کلام
۱۷ دَ هغه کتاب چه دَ یهوداه بادشاه ولوست ۱۷ ولي چه دوي
زه ترک کړي یم او نورو خدایانو ته ئي خوشبوئي وسیزلي
تاچه ما په ټول کار دَ لاسونو خپلو په قهر کړِي نو به ځما
۱۸ غضب په دي ځاي بل شِي او مړ به نه شِي ۱۸ او دَ یهوداه
بادشاه چه تاسي لي را استولي يئ چه یهوه ته سوال وکړئِ
هغه ته به داسي ووايئِ چه یهوه الله دَ اسرائیل داسي وايي
۱۹ دَ هغو کلامونو په سبب چه تا اوریدلي دِي ۱۹ او دي دَپاره چه
ستا زړه نرم وه او دَ یهوه دَ وړاندِ دِ عاجزي وکړه ستا په هغه
آوریدلو کښ چه ما په دي ځاي باندِ او دَ دغه په اوسیدونکو
باندِ کلام وکړ چه دوي به دَ ورانئِ او دَ لعنت دَپاره شِي او
خپلي جامي دِ وشلولي او ځما دَ وړاندِ دِ وژړل نو ما هم واوریدلي
۲۰ یهوه وايي ۲۰ دي دَپاره گوره زه به تا ستا له پلرونو سره
را ټول کړم او ته به خپل قبر ته په سلامتئ سره راټول
کړي شي او ستا سترگي به هغه ټول آفت چه زه ئي په دي
ځاي باندِ راکابږم ونه ویني او هغو دا کلام بادشاه ته بیا وروړ

# دري ویشتم باب

۱ ۱ او بادشاه واستول او ټول سپین ږيري دَ یهوداه او دَ
۲ اورشلیم ئي ده ته ورټول کړل ۲ او بادشاه او ټول سړي دَ
یهوداه او ټول اوسیدونکي دَ اورشلیم ورسره بیت یهوه
ته وختل او هغه کوهینان او هغه نبیان او ټول هغه

أمّت له ورړوکي تر لويه پوري او ټول کلام دَ کتاب دَ وعدي
چه په بيت يهوه کښ وموندلي شه دَدوي په غوږونو کښ
ئي ولوست ۳ او بادشاه ستني څنګه ودريده او دَ يهوه دَ ۳
وړاندِ ئي وعده وکړه چه دَ يهوه په پيرويئ به لاړ شي او دَ
ده فرضونه او دَده عهدونه او دَده حقونه به په ټول زړه
او په ټول ځان سره ساتي تاچه کلام دَ دغي وعدي چه په
دي کتاب کښ ليکلي دي قايم کړي او ټول أمّت په هغي
وعدي ولاړ وي ۴ او بادشاه خلقياه هغه بزرګ کوهين ته ۴
وفرمايل او هغو کوهينانو ته چه دَدويمي درجي وُو او دَ آستاني
ساتونکو ته چه دوي دِ له هيکلَ دَ خداوندَ هغه لوښي چه
بعل ته او اشيراه ته او ټولو فوځونو دَ آسمانونو ته جوړ
شوي وُو وباسِي او له اورشليم نه دَ باندِ دَ قدرون په پټو
کښ دِ وئي سوزوِي او دَ هغو ايري دِ بيتِ ايل ته ورورِي -
۵ او هغه کمارِيم سره دَ کوهينانو چه دَ يهوداه بادشاهانو مقرّر ۵
کړي وُو چه په لوړو ځايونو دَ يهوداه په ښهرونو کښ او
په ګرداګرد دَ اورشليم ئي خوشبويئ سوزولي او هغه چه
بعل او نمر ته او سپوږمي ته او منازلو ته او ټولو فوځونو
دَ آسمانونو ته ئي خوشبويئ سوزولي موقوف ئي کړل ۶ او هغه ۶
اشيراه ئي دَ بيتِ يهوه له اورشليم دَ باندِ دَ قدرون ورود ته
ويستله او هغه ئي دَ قدرون په رود کښ وسوزوله او دوړي
دوړي ئي ميده کړلي او هغه دوړي ئي دَ أمّت دَ ځامنو په
قبرونو وغورزولي ۷ او کورونه دَ کُونيانو چه بيتِ يهوه څنګه ۷
وُو چه هلته ښځو دَ اشيراه دَپاره پردي اودونکي وي وغورزول
۸ او له ټولو ښهرونو دَ يهوداه نه ئي کوهينان راوستل او په ۸
ټولو لوړو مکانونو چه کوهنانو په کښ خوشبويئ سوزولي له

جبعَ نه تر بيرسبعَ ئي کنده کړل او دَ هغه دَ دروازي لوړ
مکانونه ئي ونړول چه دَ ښهر دَ سردار يشوعَ دَ دروازي په مدخل
۹ کښ وُو دَ سړي په کيڼ خوا دَ ښهر دروازي څخه ۹ ليکن
کوهنان دَ لوړو مکانونو په اورشليم کښ دَ يهوه مذبح ته
نه ختل مګر فطيري ډوډۍ به ئي دَ خپلو ورونړو سره خوړلې -
۱۰ ۱۰ او ده توفت چه دَ بني هنوم په خوړ کښ دې کنده کړ تا چه
هيڅوک دَ مولک دَپاره خپل ځوي او خپله لور په اور کښ تير
۱۱ نه کړي ۱۱ او هغه آسونه چه دَ يهوداه بادشاهانو نمر ته نذرانه
ورکړي وُو دَ بيت يهوه ننه وتلو څخه او دَ ناتن ملک خواجه سرا
دالان څخه چه په بهر طرف وُو نيست ئي کړل او دَ نمر ګاډۍ ئي
۱۲ په اور وسيځل ۱۲ او هغه مذبحونه چه دَ احاز دَ بالاخاني په
بام باندِ وُو چه دَ يهوداه بادشاهانو جوړ کړي وُو او هغه
مذبحونه چه منسي دَ بيتِ يهوه په دوو غوليو کښ جوړ کړي
وُو بادشاه ونړول او له هغه ځاي نه ئي لري کړل او دَ هغو
۱۳ ګردې دَ قدرون په رود کښ وغورزاوه ۱۳ او هغه لوړ
مکانونه چه دَ اورشليم په مخامخ دَ هلاکت دَ غره په ښي لوري
وُو چه دَ اسرائيل بادشاه سليمان دَ عستورت مکروه دَ
سيدونيانو دَپاره او دَ کموش مکروه دَ موآبيانو دَپاره او دَ
ملکوم پليت دَ بني عمون دَپاره بنا کړي وُو هغه بادشاه کنده
۱۴ کړل ۱۴ او بتان ئي ريزه ريزه کړل اشيرهان ئي پريکړل او دَ هغو
۱۵ ځايونه ئي دَ آدمزاد له هډوکو ډک کړل ۱۵ او هم هسي ده
هغه مذبح چه په بيت ايل کښ وه او هغه لوړه چه يربعام
بن نباط چه اسرائيل ئي پري ګناهګار کړ جوړه کړي وه هم
دغه مذبح او دغه لوړه ئي دواړه ونړول او لوړه ئي وسوزوله
۱۶ او دوړي دوړي ئي ميده کړله او اشيراه ئي وسوزوله ۱۶ او

یوشیاه مخ وګرځاوه نو هلته ئې په غره باندِ قبرونه ولیدل نو وائې
ستول او له هغو قبرونو ئې هډوکي واخستل او په مذبح ئې وسوزول
او هغوي ئې ګنده کړل په موافق دَ هغه کلام دَ خداوند چه مردِ الله
۱۷ پرِ منادِي وکړه هغه چه په دي کلام ئې منادِي وکړه ۱۷ او ده وویل
چه دا څه ستنه دَه چه زه ئې وینم دَ هغه ښهر کسانو ورته وویل
چه دغه دَ هغې مردِ الله قبر دي چه له یهوداه راغې او په دي
کلامونو ئې منادِي وکړه لکه چه تا دَ بیت ایل په مذبح کړي دِي -
۱۸ ۱۸ نو ده وویل چه دغه پریږدئ هیڅوک دِ دغه هډوکي نه خوزوِي او
هغو دَ دغه هډوکي پرېښودل او هم دَ هغه نبي هډوکي چه له
۱۹ سامرِي راغلي وه ۱۹ او هم هسي هغه ټول کورونه دَ لوړو ځایونو چه
دَ سامرِیه په ښهرونو کښ وُو چه دَ اسرائیل بادشاهانو دَده دَ غُصّي
کولو دَپاره جوړ کړِي وُو یوشیاه لرِي کړل او له دغو سره ئې داسي کارونه
۲۰ وکړل لکه چه ده په بیت ایل کښ کارونه کړِي وُو ۲۰ او ټول کوهینان
دَ لوړو مکانونو ئې ذبح کړل هلته په مذبحونو باندِ اودَ آدمزاد
هډوکي ئې په هغې باندِ وسوزول او اورشلیم ته وجاروت
۲۱ ۲۱ او بادشاه ټول اُمّت ته وفرمایل و ئې ویل چه یهوه الله
ځپل ته فصح وکړئ لکه چه دَدي عهد په کتاب کښ لیکلي شوِي
۲۲ دِي ۲۲ څکه چه دَ دغي فصح په شان دَ هغو قاضیانو له ورځو چه
په اسرائیل ئې قضا کوله جوړه کړِي شوِي نه وه نه په ټولو ورځو
دَ بادشاهانو دَ اسرائیل کښ او نه دَ بادشاهانو دَ یهوداه کښ
۲۳ ۲۳ لیکن په اتلسم کال دَ یوشیاه بادشاه دا فصح یهوه ته په
۲۴ اورشلیم کښ جوړه کړِي شوه ۲۴ او هم هسي ساحران او
جادوګران او ترافیم او بتان او هغه ټول مکروهاتونه چه په
زمکي دَ یهوداه او په اورشلیم کښ ولیدلي شول یوشیاه لرِي
کړل تاچه قایم کړِي کلام دَ هغه تورات چه په هغه کتاب کښ

لیکلي شوي وه چه خلقیاه هغه کوهین په بیت یهوه کښې وموند
۲۵ ۲۵ او دَده په شان بادشاه نه وړاندِ له ده شوي دي چه په ټول
زړه خپل او په ټول ځان خپل او په ټول قوت خپل یهوه ته
راوجاروت دَ موسیٰ دَ ټول تورِیت په موافق او پس له ده نو دَده
۲۶ په شان پورته نه شه ۲۶ لیکن خداوند دَ خپل لوي غضب له
ګرمئ نه را و نه ګرزیده ځکه چه دَده غضب په یهوداه ګرم شه
۲۷ دَ هغو ټولو غصّو په سبب چه منسّي په غصّه کړ ۲۷ نو یهوه
وویل چه زه به یهوداه هم له خپلي مخې نه لرې کړم لکه چه
اسرائیل مِ لرې کړي دي او زه به دا ښهر اورشلیم چه ما غوره
کړي دي او دا بیت چه دَده په باب مِ وویل چه ځما نوم به په
۲۸ دغه کښې وِي ترک کړم ۲۸ او نورې خبرې دَ یوشیاه او هر څه
چه ده وکړل هغه دَ یهوداه دَ بادشاهانو دَ روزنامې په کتاب
۲۹ کښې لیکلي نه دِي څه؟ ۲۹ دَده په ورځو کښې فرعون نخو بادشاه
دَ مصر دَ فرات دَ دریاب په لورې دَ آشور په بادشاه وخوت او
یوشیاه بادشاه دَده مقابلې کولو ته ورغې او په مجدو کښې هغه
۳۰ وقت چه ئې هغه ولید نو دَې ئې مړ کړ ۳۰ او دَده نوکرانو دَده
مړي په ګاډِي کښې له مجدّو نه اورشلیم ته یوورِ او دَده په
قبر کښې ئې ښخ کړ نو دَ مُلک خلقو یهو احاز بن یوشیاه واخست
او مسح ئې کړ او دَده دَ پلار په ځاي ئې بادشاه کړ
۳۱ ۳۱ یهوآحاز چه بادشاه کیده دَ درې ویشتو کالو وه او ده درې
میاشتې په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نوم حموطل
۳۲ لور دَ ارمیاه دَ لبنه وه ۳۲ او ده دَ خداوند په سترګو کښې بدِي
۳۳ وکړه موافق دَ هغو ټولو چه دَده پلارونو وکړل ۳۳ او فرعون نخو په
ربله دَ حمات په زمکه کښې بندونه وتړل چه په اورشلیم کښې
بادشاهي ونه کړي او په ملک ئې سل قنطاره سپین زر او یو

قنطار سرہ زر تاوان ولګاوہ ۳۴ او فرعون نخو الیاقیم زوي دَ ۳۴
یوشیاہ دَدہ دَ پلار یوشیاہ په ځاي بادشاہ کړ او دَدہ نوم ئي په
یهویاقیم بدل کړ او یهواحاز ئي واخست او دَي مصر ته راغي او
هلته مړ شه ۳۵ او یهویاقیم هغه سپین او هغه سرہ زر فرعون ۳۵
ته ورکړل مګردہ دَ فرعون دَ مخ په حکم سرہ دَ سپینو زرو ورکولو
دَپارہ په زمکه ئي خراج ترتیب کاوہ چه فرعون نخو له ئي ورکړي
۳۶ او یهویاقیم چه بادشاہ کیدہ دَ پنځه ویشتو کالووہ او ۳۶
دہ په اورشلیم کښ یولس کاله بادشاهي وکړہ او دَدہ دَ مور نوم
زبیداہ وہ لور دَ فدایه چه دَ رومه وہ ۳۷ او دہ دَ خداوند په ۳۷
سترګو کښ بدي وکړہ موافق دَ هغو ټولو چه دَدہ پلرونو وکړله ٭

# څلیرویشتم باب

۱ او دَدہ په ورځو کښ نبوکدنضر بادشاہ دَ بابل وخوت او یهویاقیم ۱
تر دریو کالو پوري دَ هغه غلام وہ بیا وګرزیدہ او ورته باغي شه
۲ او خداوند په دہ بانډِ داړي دَ کسدیانو او داړي دَ آرامیانو او ۲
داړي دَ موآبیانو او داړي دَ بني عمون واستولي او هغوي ئي په
یهوداہ واستول چه تباہ ئي کړي موافق دَ هغه کلام دَ خداوند چه
دَ خپلو بندګانو نبیانو په لاس ئي خبرہ پري وکړہ ۳ په یقین سرہ ۳
دغه دَ یهوہ کلام په موافق په یهوداہ بانډِ وشول چه له خپل
حضورہ ئي لري کړي دَ منسّي دَ خطاؤ دَپارہ په موافق دَ هغو ټولو
چه دہ وکړل ۴ او هم هسي دَ هغو بې ګناهانو دَ وینو په سبب چه ۴
دہ توي کړي چه دہ اورشلیم دَ بې ګناهانو له وینو ډک کړ او یهوہ
خوښه نه کړہ چه معاف ئي کړي ۵ او نوري خبري دَ یهویاقیم او هرڅه ۵
چه دہ وکړل هغه دَ یهوداہ دَ بادشاهانو دَ روزنامي په کتاب کښ
لیکلي نه دِي څه ؟ ۶ او یهویاقیم له خپلو پلرونو سرہ څملاست او ۶

۷ يهوياکين زوي ئې دَده په ځاي بادشاهي وکړه ۷ او بادشاه دَ
مصر بيا زيات نه کړ چه له خپل مُلک نه ووزي ځکه چه دَ
بابل بادشاه دَ مصر له درياب نه دَ فرات تر درياب پوري
ټول څه چه دَ مصر دَ بادشاه وُو واخستل
۸ ۸ او چه يهوياکين بادشاه شه دَ اته لسو کالونو وه او
ده په اورشليم کښې دري مياشتي بادشاهي وکړه او دَده دَ
۹ مور نُوم نحوشتا وه لُور دَ الناتان دَ اورشليم وه ۹ او ده دَ
خداوند په سترګو کښې بدي وکړه موافق دَ هغو ټولو چه دَده
۱۰ پلار کړي وه ۱۰ او په دغه وقت کښې دَ نبوکدنضر بادشاه دَ بابل
نوکران اورشليم ته وختل او هغه ښهر ئې ګير کړ او په تنګئ
۱۱ کښې راغي ۱۱ او نبوکدنضر بادشاه دَ بابل هم په ښهر باندي
۱۲ ورغي او نوکرانو ئې په هغه باندِ ضرر رَسونکي وُو ۱۲ نو يهوياکين
بادشاه دَ يهوداه دَ بابل بادشاه ته ور ووت دَي او مور ئې
او نوکران ئې او سرداران ئې او خواجه سرايان ئې او دَ بابل
۱۳ بادشاه دَ خپلي بادشاهئ په اتم کال هغه ونيو ۱۳ او ټولي خزانئ
دَ بيتِ يهوه او خزانئ دَ بادشاه دَ کور ئې ور نه ويستلي او ټول
لوښي دَ سرو زرو چه سليمان بادشاه دَ اسرائيل دَ خداوند
په هيکل کښې جوړ کړي وُو ټوکړي ئې کړل لکه چه خداوند
۱۴ کلام وکړ ۱۴ او ټول اورشليم او ټول سرداران او ټول جبّاران
دَ قوّت ئې لس زره په جلاوطنئ جلاوطن کړل او ټول کاريګران
او لوهاران ئې له مسکينانو دَ زمکي هيڅوک پاتي نه شه ـ
۱۵ ۱۵ او يهوياکين ئې و بابل ته په جلاوطني بوت او دَ بادشاه
مور او دَ بادشاه ښځي او دَده خواجه سرايان او دَ زمکي اوّل
۱۶ قوّتناک ئې له اورشليم نه بابل ته قيد بوتلل ۱۶ او ټول زوراور
کسان چه اوه زره وُو او کاريګران او لوهاران يو زر او ټول

جنګيالي بناغلي دَ بابَل بادشاه بابَل ته په قيد بوتلل ۱۷ او دَ ۱۷
بابَل بادشاه دَ هغه تره متنياه ئې دَ هغه په ځاي بادشاه
کړ او دَ هغه نوم ئې په صدقياه بدل کړ
۱۸ او صدقياه چه بادشاه شه دَ يووِيشتو کالو وه او ۱۸
يوولس کاله ئې په اورشليم کښې بادشاهي وکړه او دَده دَ
مور نوم حموطَل وه لُور دَ ارمياه چه دَ لبنَه وه ۱۹ او ده دَ ۱۹
خداوند په سترګو کښې بدِي وکړه موافق دَ هغو ټولو چه يهوياقيم
وکړلي ۲۰ ځکه چه دَ خداوند په غضب بانِدِ داسي وشول چه ۲۰
په اورشليم او په يهوداه تر دي حده چه دوي ئې له خپل مخ
له وړاندِ نه وغورزول او صدقياه دَ بابَل له بادشاه نه ياغي شه

# پنځه ويشتم باب

۱ او دَ هغه دَ بادشاهت په نهم کال دَ لسمي مياشتي په لسم ۱
تاريخ داسي وشول چه دَ بابَل بادشاه نبوکدنضر هغه او دَده
ټول لښکر په اورشليم بانِد راغي او په ده بانِدِ ئې ډيره
وکړه او ګرداګرد ئې برجونه بنا کړل ۲ او دَ صدقياه بادشاه تر ۲
يوولسم کاله پوري هغه ښهر په تنګئ کښې راغي ۳ او په نهمه ۳
دَ هغي مياشتي په ښهر کښې لوږه غالبه شوه او دَ ملک
دَ خلقو دَپاره ډوډئ نه وه ۴ او هغه ښهر ځيرلي کړي شه ۴
او ټول جنګيالي کسان په شپه کښې وتښتېدل دَ هغي دروازي
له لاري چه دَ دوو ديوالونو په مينځ کښې دَ بادشاه دَ باغ
په لوري وه او کسديان په ښهر بانِد ګرداګرد وُو او هغه دَ
بيابان په لاري لاړل ۵ او دَ کسديانو لښکري په بادشاه پسي شولي ۵
او دَ اريحا په عرابه کښې ورورسيدل او دَده ټولي لښکري ورنه
تار په تار شولي ۶ او هغو بادشاه ونيوه او دَ بابَل بادشاه ته ئې ۶

په ربله کښ ور وخاته او هغو په ده باندي دَ فتویٰ خبري
۷ وکړي ۷ او دوي دَ صدقیاه زامن دَده دَ سترګو دَ وړاندِ
ووژلل او دَ صدقیاه سترګي ئي ووبستلي او دَ زیړو په
۸ زنځیرونو ئي بند وتاړه او بابل ته ئي وروست ۸ او په
پنځمي میاشتني په اووم تاریخ چه هغه دَ بابل بادشاه
نبوکدنضر دَ بادشاهئ نولسم کال دئ نو نبوزردان نوکر
دَ بابل دَ بادشاه چه دَ خاصه دارانو سردار وه اورشلیم
۹ ته راغي ۹ او بیت یهوه او دَ بادشاه کور او ټول کورونه
۱۰ دَ غټانو ئي په اور وسوزول ۱۰ او دَ کِسدیانو ټولو
لښکرو چه دَ خاصه دارانو له سردار سره وُو ټول ګرداګرد
۱۱ دیوالونه دَ اورشلیم ئي ونړول ۱۱ او هغه باقي خلق چه
په ښهر کښ پاتي وُو او هغه پرښوالان چه دَ بابل
بادشاه ته پریوتلي وُو او باقي ټولي چه وُو نبوزردان
۱۲ دَ خاصه دارانو سردار په جلاوطنئ بوتلل ۱۲ لیکن دَ
خاصه دارانو سردار دَ ملک مسکینان پریښول چه دَ
۱۳ باغونو دهقانان وِي ۱۳ او هغه دَ زیړو ستني چه په بیت
یهوه کښ وي او کرسئ او هغه دَ زیړو دریاب چه په
بیت یهوه کښ وُو کِسدیانو مات کړل او دَ هغو زیړئ
۱۴ بابل ته یووړل ۱۴ او هغه دیګونه او یومونه او کلګیرونه
او څمڅئ او ټول دَ زیړو لوښي چه په کښ ئي خدمت کاوه
۱۵ هغو واخستل ۱۵ او مجمرونه او کټوري چه دَ سرو زرو
وه په سرو زرو او هغه چه دَ سپین زرو وُو په
۱۶ سپین زر دَ خاصه دارو سردار واخستل ۱۶ او هغه د
ستني او یو دریاب او کرسئ چه سلیمان دَ بیتِ یهوه
دَپاره جوړ کړي وُو دَدغو ټولو لوښو زیړ بي تُوله وو-

۱۷ ۱۷ او دَ هغې يوې ستني اوچتوالي اته لس هاتي وه او په
هغې باندي دَ زيړو كونتره وه اوچتوالي دَ كونتري دري هاتي
او شبكي او انارونه چه په كونتري گرداگرد وُو هغه واړه
دَ زيړو وُو او دوېمې ستني لره په شبكيو باندي هم
۱۸ دَدغو په شان وُو ۱۸ او دَ خاصه دارانو سردار سراياه
سردار كوهين او صفنياه دوېم كوهين او دري ساتونكي
۱۹ دَ آستانې ئې ونيول ۱۹ او يو خواجه سرا ئې له ښهرَ ونيوه
چه دغه په جنگياليو كسانو پښتن مير وه او پنځه سړي
له هغو نه چه دَ بادشاه مخ به ئې كوت چه په ښهر كښ
وموندلي شول او دَ فوځ لوي كاتب چه دَ ملك خلقو به
ئې فوځ كښې كوله او شپيته سړي دَ ملك له خلقو چه په
۲۰ ښهر كښ موندلي شول ۲۰ او دغه نبوزردان دَ خاصه دارانو
سردار ونيول او دَ بابل بادشاه ته ئې په ربله كښ ورووستل
۲۱ ۲۱ او دِ بابل بادشاه دوي ووهل او په ربله
كښ دَ حمات په زمكه كښ ئې ووژلل نو يهوداه له خپلې
۲۲ خاورې جلاوطنې وويستلي شه ۲۲ او دَ هغو خلقو چه دَ
يهوداه په زمكه كښ پاتې وُو چه دَ بابل بادشاه
نبوكدنضر پرېښود لي وو په هغو باندي ئې جدلياه بن
اخيقام بن شافان ودراوه

۲۳ ۲۳ او چه ټولو سردارانو دَ لښكرو واوريدل دوي
او دَ دوي كسانو چه دَ بابل بادشاه جدلياه ودرولي وه
نو مصفاه ته جدلياه له ورغلل او اسمعيل بن نثنياه
او يوحنان بن قاريح او سراياه بن تخومث هغه نطوفاتي
۲۴ او يارنياه بن معلي دوي او دَ دوي سړي هم ۲۴ او جدلياه

دوي ته او دَدوي سړو ته قسم وکړ او دوي ته ئې ويل
چه ناسي دَ کسديانو له نوکرانو مه ويريږئ په ملک اوسئ
او دَ بابل دَ بادشاه خدمت کوئ او تاسو ته به ښه
۲۵ وي ۲۵ او په اوومه مياشتي کښ اسمٰعيل بن نتنياه بن
اليشمع چه دَ بادشاهي نسل وه له لسو کسانو سره ورغې
او جدلياه ئې وواهه او هغه مړ شه او هم هغه يهوديان
۲۶ او هغه کِسديان چه په مصفاه کښ ورسره وُو ۲۶ او
ټول خلق له وړوکي تر لويه پوري او سرداران دَ لښکرو
پورته شول او مصر ته لاړل ځکه چه دوي له کِسديانو
ويريدل
۲۷ ۲۷ او دَ يهوياکين بادشاه دَ يهوداه دَ جلاوطنئ په
اوه ديرشم کال په دولسمي مياشتي او په اوه ويشتم تاريخ
داسي وشول چه دَ بابل بادشاه اويل مردک په خپلي
بادشاهئ کيدلو کښ دَ يهوياکين بادشاه دَ يهوداه سره ئې
۲۸ دَ زندان له کوره پورته کړ ۲۸ او په ښيګړي ئې ورسره
خبري وکړي او دَده کرسئ ئې له هغو ټولو بادشاهانو چه
۲۹ په بابل کښ له هغه سره وُو پاس کړه ۲۹ او دَده دَ
زندان جامي ئې بدلي کړي او ده ټولي ورځي دَ ژوندانه خپل
۳۰ مدام ډوډئ دَ هغه دَ وړاندِ خوړه ۳۰ او دَده وظيفه
مدامي وظيفه ورکولي شوه دَ بادشاه له طرف نه ورځ په
ورځ خبره لکه دَده دَ ژوندانه په ټولو ورځو کښ ❋

# روز نامه

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو كښ ترجمه كړي شه

كلام الله

١٨٩٥

T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد آلرحمان او غلام جلاني كاتب

در مطبع برتش و فارن بيبل سوسيتي لندن

# اوَّلَ روز نامه

## اوّل باب

١ آدَم شيث انوش ٢ قينان مهللئيل يارَدَ ٣ اخنوک متوشالح ٢ ٣
لامك ٤ نوح سيم حام يافث ٥ زامن دَ يافث جومر ماجوج ٤ ٥
او ماداي او ياوان او توبال او ميشک او تيراص ٦ او زامن ٦
دَ جومر اشکنّاز او ريفاث او توجرماه ٧ او دَ ياوان زامن ٧
اليشاه کتيم او دودانيم ٨ او زامن دَ حام کوش او مصرايم فوط ٨
او کنعان ٩ او زامن دَ کوش سبا او حويله او صبتا او رعما ٩
او صبتکا او زامن دَ رعما شبا او ددان ١٠ او کوش نمرود ١٠
وزيږاوه هغه په زمکه کښ دَ جبّاري شروع وکړه ١١ او مصرايم ١١
لوديم او عناميم او لهابيم او نفتوحيم وزيږول ١٢ او فتروسيم او ١٢
کسلوحيم (هغوي چه ورنه فلستيم) او کفتوريم ووتل ١٣ او کنعان ١٣
خپل مشري صيدون وزيږاوه او حِيث ١٤ او يبوسِي او اموري ١٤
او جرجاسِي ١٥ او حوّي او عرقي او سيني ١٦ او اروادِي او ضمّاري ١٥ ١٦
او حماثِي ١٧ دَ سام زامن عيلام او اَشّور او ارفکشد او لود ١٧
او آرام او عوځ او حول او جثر او مشک ١٨ او ارفکشاد شالح ١٨
وزيږاوه او شالح عيبر وزيږاوه ١٩ عيبر لره دوه زامن وزيږيدل ١٩
دَ يوه نوم فلج ځکه چه دَ هغه په ورځو کښ زمکه وويشلي
شوه او دَ دغه دَ ورور نُوم يقطان ٢٠ او يقطان الموداد او شالف ٢٠
او حصرماوث او يارح ٢١ او هدورام او اوزال او دقله ٢١
٢٢ او عيبال او ابيمايل او شبا ٢٣ او اوفير او حويله او يوباب ٢٢ ٢٣
دا ټول دَ يقطان زامن دِي ٢٤ سيم ارفکشد شالح ٢٥ عابر وفلج ٢٤ ٢٥
رعو ٢٦ سروج ناحور تارح ٢٧ ابرام چه هغه ابراهيم دي ٢٨ دَ ابراهيم ٢٦ ٢٧ ٢٨

۲۹ زامن اضحاق اسماعیل ۲۹ دا دَ هغو نسب‌نامي دِي دَ اسماعیل
۳۰ مشري نبایوت او قیدار او ادبئیل او مبسام ۳۰ او مشماع او دومه
۳۱ او مسّا او حدد او تیما ۳۱ یطور نافیش او قدماه دغه زامن دَ
۳۲ اسماعیل دِي ۳۲ او زامن دَ قطوري سُریتي دَ ابراهیم زُمران او
یاقشان او مدان او مدیان او یشباق او شوحاي وزیږول او
۳۳ زامن دَ یاقشان شبا او ددان ۳۳ او زامن دَ مدیان عیفاه او
عیفر او حنوک او ابیداع او الداعاه دا ټول زامن دَ قطوري دِي
۳۴ ۳۴ او ابراهیم اضحاق وزیږاوه او دَ اضحاق زامن عیساؤ اسرائیل
۳۵ وُو ۳۵ دَ عیساؤ زامن الیفاز اورعوئیل او یعوش او یعلام او
۳۶ قورح ۳۶ دَ الیفاز زامن تیمان اواومار او صفي او جعتام او قناز
۳۷ او تمناع او عمالیق ۳۷ زامن دَ رعوئیل نحث او زارح او شمّاه او
۳۸ مزّاه ۳۸ او زامن دَ سعیر لوطان او شوبال او صبعون او عیناه
۳۹ او دیشون او ابصر او دیشان ۳۹ او دَ لوطان زامن حوري او
۴۰ هومام او دَ لوطان خور تمناع ۴۰ زامن دَ شوبال علیان او مناحث
او عیبال او شفي او اوزام او زامن دَ صبعون اياه او عیناه
۴۱ ۴۱ دَ عناه زوي دیشون او زامن دیشون حمران او شبان او
۴۲ یثران او کران ۴۲ دَ ابصر زامن بلهان او زعوان او یعقان
۴۳ او زامن دَ دیشان عوځ او اران ۴۳ دا هغه بادشاهان دِي چه
دَ ادوم په زمکه کښې ئې بادشاهي وکړه وړاندِ له هغه چه چا
بادشاه په اسرائیل بادشاهِي وکړه بلع بن بعور او دَ ښهر نوم ئې
۴۴ دِنهاباه وه ۴۴ او بلع مړ شه او دَ هغه په ځاي یوباب بن
۴۵ زارح دَ بصره بادشاه شه ۴۵ او یوباب مړ شه دَدغه په ځاي
۴۶ حوشام دَ زمکي دَ تیماني بادشاه شه ۴۶ او حوشام مړ شه او
دَدغه په ځاي هدد بن بدد بادشاه شه هغه چه مدیان ئې
دَ مواب په ورشو کښې ووهل او دَده دَ ښهر نُوم عویت وه

۴۷ او هدد مړ شه او دَده په ځاي سملاه دَ مسریقې بادشاه شه ۴۷
۴۸ او سملاه مړ شه او دَده په ځاي شاؤل دَ رحوبوت دَ ۴۸
نهر بادشاه شه ۴۹ او شاؤل مړ شه او دَدغه په ځاي بعل‌حانان ۴۹
بنِ عکبور بادشاه شه ۵۰ او بعل‌حانان مړ شه او دَ هغه په ۵۰
ځاي کښې هدد بادشاه شه او دَ هغه دَ ښهر نوم فاعي وه او
دَ ښځې نوم ئې مهطبیل لور دَ مطرد لور دَ ماذهب ۵۱ او هدد ۵۱
مړ شه او امیران دَ ادوم وُو امیر تمناع امیر علوه امیر یتیث
۵۲ امیر اهولیباماه امیر ایلاه امیر فینون ۵۳ امیر قنز امیر تیمان ۵۲ ۵۳
امیر مبځار ۵۴ امیر مجدئیل امیر عیرام دغه امیران دَ ادوم دِي ÷ ۵۴

# باب دویم

۱ دغه زامن دَ اسرائیل دِي راؤبین شمعون لاوِي یهوداه ۲ یساکر ۱ ۲
او زبُلون دان او یوسف او بنیامین نفتالِي جاد او اشیر ۳ زامن ۳
دَ یهوداه عیر او اونان او شیله هغه دري له بث‌شوع هغه
کنعانِي نه وزیږیدلي شول او عیر مشر دَ یهوداه دَ خداوند په
سترګو کښې شریر وه او هغه ئې مړ کړ ۴ او دَ هغه نږور تامار ۴
هغه لره فارص او زارح وزیږول ټول زامن دَ یهوداه پنځه وُو
۵ دَ فارص زامن حصرون او حامول ۶ او دَ زارح زامن زمرِي ۵ ۶
او ایثان او هیمان او کلکول او دارع دا ټول پنځه دِي ۷ او دَ ۷
کرمي زامن عاکار هغه آزارونکي دَ اسرائیل چه په حرامو کښې
ئې خیانت وکړ ۸ او دَ ایثان زوي عزریاه ۹ او دَ حصرون زامن ۸ ۹
چه ده لره زیږیدلِي شوِي وُو یرحمئیل او رام او کلوبائي وُو –
۱۰ او رام عمیناداب وزیږاوه او عمیناداب نحشون وزیږاوه سردار ۱۰
دَ بنِي یهوداه ۱۱ او نحشون سلما وزیږاوه او سلما بوعز وزیږاوه ۱۱
۱۲ او بوعز عوبید وزیږاوه او عوبید یسِي وزیږاوه ۱۳ او یسِي ۱۲ ۱۳

خپل مشر الیاب وزيږاوه او ابیناداب دویم او شمعي دریم
۱۴ ۱۵ ۱۴ او نتنئیل څلورم او ردای پنځم ۱۵ او اوځم شپږم او داؤد
۱۶ اوم ۱۶ او د دوي خویندي ځرویه او ابیجایل او د ځرویه زامن
۱۷ ابیشاي او یواب او عسائیل دري ۱۷ او ابیجایل عماسا وزيږاوه
۱۸ او د عماسا پلار یثر اسمعیلي ۱۸ او کالب زوي د حصرون له
عزوبه خپلي ښځي او له یریعوث نه او دغه ئي زامن دي یاشر
۱۹ او شوباب او اردون ۱۹ او چه عزوبه مړ شه نو کالب د خپل
۲۰ ځان دپاره افرات واخستله او هغه لره ئي حور وزيږاوه ۲۰ او حور
۲۱ اوري وزيږاوه او اوري بصلئیل وزيږاوه ۲۱ او پس له دغه
حصرون ولوړ د ماکیر ابي جلعاد ته ورغي او هغه ئي واخستله
۲۲ او هغه د شپیتو کالو وه او هغه ته ئي سجوب وزيږاوه ۲۲ او
سجوب یائیر وزيږاوه او هغه لره د جلعاد په زمکه کښ
۲۳ درویشت ښهرونه وو ۲۳ او جشور او ارام حووث یائیر له هغو
واخست سره له قنات او د هغه له کلیو شپیته ښهرونه دا ټول
۲۴ زامن د ماکیر پلار د جلعاد وو ۲۴ او پس له مړیدلو د حصرون
په کالب افراته کښ د حصرون ښځي ابیاه اشحور پلار د تقوع
۲۵ وزيږاوه ۲۵ او د یرحمئیل مشر د حصرون دغه زامن وو رام د
۲۶ هغه مشر او بونه او اورن او اوځم او احیاه ۲۶ او د یرحمئیل
۲۷ بله ښځه وه او نوم ئي عطاره وه دغه مور د اونام وه ۲۷ او
زامن د رام دا وو مشر یرحمئیل معص او یامین او عاقر -
۲۸ ۲۸ او د اونام زامن شماي او یداع او د شماي زامن ناداب او
۲۹ ابیشور ۲۹ او د ابیشور د ښځي نوم ابیجایل او هغه لره ئي
۳۰ احبان او مولید وزيږول ۳۰ او د ناداب زامن سلد او افایم
۳۱ او سلد بي‌اولاد مړ شه ۳۱ او د افایم زامن یشعي او د یشعي
۳۲ زامن شیشان او د شیشان زامن احلاي ۳۲ او د یاداع زامن

ورور دَ شماي يشر او يوناتان: او يشر بي اولاد مړ شه ۳۳ او ۳۳
دَ يوناتان زامن فلت او زازا دغه زامن دَ يرحمئيل دِي ۳۴ او ۳۴
دَ شيشان زامن نه وُو بلکه لونړه او دَ شيشان مصري غلام
وه نوم ئې يرحع وه ۳۵ او شيشان خپله لُور يرحع غلام خپل ته ۳۵
بنځه ورکړله او هغه ته ئې عتاي وزيږاوه ۳۶ او عتاي ناتان ۳۶
وزيږاوه او ناتان زاباد وزيږاوه ۳۷ او زاباد افلال وزيږاوه ۳۷
افلال عوبيد وزيږاوه ۳۸ او عوبيد ياهو وزيږاوه او ياهو ۳۸
عزرياه وزيږاوه ۳۹ او عزرياه حالص وزيږاوه او حالص العاسه ۳۹
وزيږاوه ۴۰ او العاسه سسماي وزيږاوه او سسماي شلوم ۴۰
وزيږاوه ۴۱ او شلوم يقميه وزيږاوه او يقميه اليشمع وزيږاوه ۴۱
۴۲ او زامن دَ کالب ورور دَ يرحمئيل دا وُو مشري ئې ۴۲
ميشاع هغه دَ زيف پلار وه او زامن دَ مريشه پلار دَ
حبرون ۴۳ او زامن دَ حبرون قورح او تپوح او راقم او شامع ۴۳
۴۴ او شامع راحم وزيږاوه پلار دَ يرقعام او رقم شماي ۴۴
وزيږاوه ۴۵ او دَ شماي زوي معون او معون پلار دَ بيت صور ۴۵
۴۶ او عيفه سرية دَ کالب حاران او موځا او جازيز وزيږاوه ۴۶
او حاران جازيز وزيږاوه ۴۷ او دَ ياهداي زامن رجم او يوتام ۴۷
او جيشان او فلط او عيفه او شاعف ۴۸ او سرية دَ کالب ۴۸
معکه شبر او ترحانه وزيږول ۴۹ او شاعف پلار دَ مدمنه ۴۹
او شوا پلار دَ مکبينا او پلار دَ جبعا وزيږول او دَ کالب لور
عکسه وه ۵۰ دغه زامن دَ کالب وُو زوي دَ حور مشر دَ افراته ۵۰
شوبال پلار دَ قريت يعاريم ۵۱ او سلما پلار دَ بيت لحم او حاريف ۵۱
پلار دَ بيت جادير ۵۲ او شوبال پلار دَ قريت يعاريم لره زامن ۵۲
وُو هاروآه او حصي همنوحوتي ۵۳ او خيلخانه دَ قريت يعاريم ۵۳
اِيثري او الفوتي او آل شماتي او آل مشراعي له دغو نه ځارعاتي

۵۴ او اشتاولي وونتل ۵۴ زامن دَ سلما بيتلحم او نطوفاتي او عطروت
۵۵ بيت يوآب او حصي ماحتي هغه صريمي ۵۵ او خيلخاني دَ هغو
كاتبانو چه دَ يعبيز اوسيدونكي وُو ترعاثم او سمعاتيم او سوكاتيم
دا هغه قينيان دِي چه له حمّث پلار دَ بيت‌ركاب وتلي دِي ✢

## دريم باب

۱ آ او دغه دِي زامن دَ داؤد چه ده لره په حبرون كښ وزيږيدلي شول
مشر امنون له اخينوعم هغه يزرعيلي نه دويم دانييل له
۲ ابيجايل هغه كرملي نه ۲ دريم ابيشالوم ابنِ معكه لور دَ تلماي
۳ بادشاه دَ جشور څلورم ادونيا ابنِ حجيث ۳ پنځم شفطيا له ابيطالِ
۴ شپږم يثرعام له عجلي ښځي خپلي ۴ او ده لره شپږ په حبرون
كښ زيږيدِلي وُو او هلته ئي اوه كاله او شپږ مياشتي بادشاهي
وكړه بيا ئي دري ديرش كاله په اورشليم كښ بادشاهي وكړه
۵ ۵ او دغه ده لره په اورشليم كښ وزيږيدلي شول شمعا او شوباب او
ناثان او سليمان څلور سره له بتشوع لور دَ عميئيل او يبحار
۶ او اليشامع او اليفالط ۷ او نوجه او نفج او يافيع ۸ او اليشع
۹ او الياداع او اليفلط نه سره ۹ ټول زامن دَ داؤد بي له زامنو
۱۰ دَ سريتو او ثامار دَ دوي خور وَه ۱۰ او دَ سليمان زوي رحبعام
او دَ هغه زوي ابياه او دَ هغه زوي آسا او دَ هغه زوي
۱۱ يهوشافاط ۱۱ او دَ هغه زوي يورام او دَ هغه زوي آخز او
۱۲ دَ هغه زوي يواش ۱۲ او دَ هغه زوي امصيا او دَ هغه زوي
۱۳ عزريا دَ هغه زوي يوثام ۱۳ او دَ هغه زوي آحاز او دَ هغه
۱۴ زوي حزقياه او دَ هغه زوي منسي ۱۴ او دَ هغه زوي آمون
۱۵ او دَ هغه زوي يوشياه ۱۵ او دَ يوشياه زامن هغه مشر يوحانان
۱۶ او دويم يهوياقيم دريم صدقيا څلورم شلوم ۱۶ او دَ يهوياقيم

۱۷ زامن یکنیاه زوي دَ هغه صدقیاه ۱۷ او دَ یکنیاه زامن اَسّیر
۱۸ او شالتئیل زوي ئې ۱۸ او ملکیرام او فدایاه او شناصر او
۱۹ یقمیا او هوشاماع او ندبیاه ۱۹ او دَ فدایاه زامن زربابل او
شمعي او دَ زربابل زامن مُشلام او حننیاه او دَ دوي خور شلومیث
۲۰ ۲۰ او حشوباه او اوهل او برکیاه او حصدیاه او یوشب‌حسد
۲۱ پنځه ۲۱ او دَ حننیاه زامن پلطیاه او اشعیاه او زامن دَ رفایاه
۲۲ زامن دَ ارنان زامن دَ عوبدیاه ۲۲ او زامن دَ شکنیاه شمعیاه
او زامن دَ شمعیاه حطوش او یجال او باریح او نعریاه او
۲۳ شافاط شپږ ۲۳ او دَ نعریاه زامن الیوعیني او حزقیاه او عزریقام
دري او دَ الیوعیني زامن هودایاهو او الیاشیب او فلایاه او
عقوب او یوحانان او دلایاه او عناني اوه ÷

# څلورم باب

۱ ۱ زامن دَ یهوداه پارځ او حصرون او کرمي او حور او شوبال
۲ ۲ او رایاه زوي دَ شوبال یحث وزیږاوه او یحث اخومای او
۳ لاهد وزیږول دغه خیلخانې دَ ځارعاتیانو دِي ۳ او دا دَ ابي‌عیطم
دِي یزرعیل او یشما او یدباش او دَ دوي دَ خور نُوم هضّللفوني
۴ ۴ او فنوئیل پلار دَ جدور او عیزر پلار دَ حوشه دا زامن
۵ دَ حور دِي مشر دَ افراطه پلار دَ بیت‌لحم ۵ او دَ اشحور ابي
۶ تقوع دوه ښځې وې حلاه او نعره ۶ او نعرې ده لره احوزام
او حافر او تیماني او اخشتاري وزیږول دغه زامن دَ نعراه
۷ ۸ دِي ۷ او زامن دَ حلاه ځرث او ځوحر او اثنان ۸ او قوص
عانوب وزیږاوه او هځوبیابه او دا خیلخانې دَ آخرحیل بن هارم
۹ ۹ او یعبیځ له خپلو وروڼو اشراف وه او دَ ده مور دَده نُوم
۱۰ یعبیځ وباله وئې ویل چه ما په عذاب سره هغه وزیږاوه ۱۰ او

یعبیځ الله دَ اسرائیل وباله وېل ئ کاشکي چه ما ته دِ په
برکت سره مبارک کړي او ځما حدونه دِ ډېر کړي او ستا لاس
له ما سره وي او له شر نه مِ وساتي هسي نه چه په
۱۱ عذاب مِ کړي نو الله هغه چه ده سوال کړي وه راوړ ۱۱ او
کلوب ورور دَ شوخه محیر وزیږاوه هغه دَ اشتون پلار دی
۱۲ ۱۲ او اشتون بیت رافا وزیږاوه او پاسح او تحنه پلار دَ عیر دَ
۱۳ ناحاش ښهر دغه خلق دَ ریکا کسان دِي ۱۳ او زامن دَ قناز
۱۴ عتنئیل او سرایا او زوي دَ عتنئیل حتات ۱۴ او معنوتاي عفره
وزیږاوه او سرایا یواب پلار دَ خوړي دَ خراشیم وزیږاوه چه
۱۵ دغه کاریګران وُو ۱۵ او زامن دَ کالب بن یفنه عیرو او ایله
۱۶ او ناعم او دَ ایله زوي قناز ۱۶ او دَ یللئیل زامن زیف او زیفه
۱۷ او تیریا او اسرائیل ۱۷ او زامن دَ عزره یتر او مرد او عافر او
یالون او هغه په مریام او په شماي او یشح پلار دَ اشتموع
۱۸ حامله شوه ۱۸ او دَ هغه ښځي یهودیه یارد پلار دَ جدور
او حبر پلار دَ سوکو او یقوتئیل پلار دَ زانوح وزیږول او
۱۹ دغه زامن دَ بتیه لور دَ فرعون چه مرد واخسته ۱۹ او زامن
دَ دې ښځي هودیاه لور دَ نحم ابي قعیلاه هغه جرمي او اشتموع
۲۰ معکي ۲۰ او دَ شیمون زامن امنون او رنه بن حانون او تیلون
۲۱ او دَ یشعي زامن زوحیت او بن زوحیت ۲۱ بني شیلاه بن یهوداه
عیر پلار دَ لیکاه او لعداه پلار دَ ماریشه او خپلواني دَ کور
۲۲ کارکونکي دَ نري کتانې له بیت اشبیع ۲۲ او یوقیم او دَ کوزیبا
کسان او یوآش او سارف هغه چه دَ موآب خاوندي کوله او
۲۳ یشوبي لاحم او دا کارونه قدیمي دِي ۲۳ دغه کمباران دِي او
وسیدونکي دَ ناعیم او دَ جدیراه هلته له بادشاه سره دَ ده دَ
۲۴ کار دپاره اوسیدل ۲۴ دَ شمعون زامن نموئیل او یامین او یاریب

۲۵ او زارح او شاؤل ۲۵ او دَده زوي شلوم زوي ئې مبسام زوي
۲۶ ئې مشماع ۲۶ او دَ مشماع زامن حموئيل زوي ئې زكور زوي ئې
۲۷ شمعي زوي ئې ۲۷ او دَ شمعي شپاړس زامن وُو او شپږ لوڼړه
او دَده دَ وروڼړو ډير زامن نه وُو او ټولي خيلخاني دَ دوي
۲۸ دَ بني يهوداه په شان ډيري نه شوي ۲۸ او دوي په بيرشبع او
۲۹ مولاداه او حصور شوعال كښې اوسيدل ۲۹ او په بلهه او عاصم
۳۰ ۳۱ او تولاد كښې ۳۰ او په بتوئيل او حرمه او صقلغ كښې ۳۱ او په
بيت مركابوث او په حصرسوسيم او په بيت برئي او په سعرائيم
۳۲ كښې دا دَ هغو ښهرونو دِي دَ داؤد تر بادشاهئ پوري ۳۲ او
دَ دوي كلي عِطام او عين رِمّون او توكن او عاشان پنځه ښهرونه
۳۳ ۳۳ او هغه ټول كلي چه چاپيره دَ دي ښهرونو دِي تر باعل
۳۴ پوري دا دَ دوي استوګني او نسبونه دِي ۳۴ او مشوباب او يمليك
۳۵ او يوشا بن امصياه ۳۵ او يوئيل او ياهو بن يوشبياه بن سراياه
۳۶ بن عسيئيل ۳۶ او اليوعيناي او يعقوباه او يشوحاياه او عشاياه
۳۷ او عديئيل او يسيميئيل او بناياه ۳۷ او زيزا بن شفعي بن الون
بن يداه بن شمري بن شمعياه دغه چه په خپلو خپلو نومونو
راغلي دِي دَ دوي دَ خيلخانو اميران دِي او دَ دوي دَ پلرونو كورونه
۳۹ ډير زيات شول ۳۹ او دَ جدور تر ننوتني دَ خوري تر نمرخاته
۴۰ پوري لاړل چه دَ خپلو رمو دَپاره څراګاه ولټوي ۴۰ نو دوي دَ
ونښو او غوړه څراګاه ومونده چه هغه زمكه په دواړو لاسونو ارته
او سكوني او دَ اسودګئ ځكه چه له اهل حام اوسيدونكي له قديمه
۴۱ هلته وُو ۴۱ او هغوي چه نومونه ليكلي دِي دَ حزقياه بادشاه
دَ يهوداه په ورځو كښې راغلل او دَ هغو خيمي ئې ووهلي او هغه
معونيان چه هلته كښې ئې وموندل حرم ئې كړل او تر دې ورځي
پوري دَ دغو په ځايونو كښې اوسيدل ځكه چه دَ دوي دَ څارويو

٤٢ دَپاره هلته ځراګاه وه ٤٢ او له دوي نه يعني دَ شمعون له زامنو
دَ سعير غره ته پنځه سوه کسان لاړل او دَ دغو سرداران فلطيا
٤٣ او نعرياه او رفاياه او عزيئيل زامن دَ يشعي ٤٣ او هغه باقي تښتيدلي
دَ عماليق يې ووهل او تر نن ورځي پوري هلته اوسيدل ❊

# پنځم باب

١ ١ او زامن دَ راؤبين مشر دَ اسرائيل (ځکه چه دغه مشر
وه) ليکن دي دَپاره چه ده دَ خپل پلار بچاونړه ناپاکه کړه نو دَده
دَ مشرئ حق دَ يوسف زوي دَ اسرائيل وزامنو ته ورکړي شه
٢ او دَ مشر حق په مردم شماريِ کښې نه کيده ٢ ځکه چه يهوداه
په خپلو ورونړو زوراور شه او امير له ده راځي ليکن
٣ مشري دَ يوسف ده ٣ زامن دَ راؤبين مشر دَ اسرائيل حنوک
٤ او فلو حصرون او کرمي ٤ دَ يوئيل زامن دَ هغه زوي شمعيا
٥ او دَ هغه زوي جوج او دَ هغه زوي شمعي ٥ او دَ هغه زوي
٦ ميخا او دَ هغه زوي رايا او دَ هغه زوي بعل ٦ او دَ هغه زوي
بيراه هغه چه دَ اسور بادشاه تلغث فلناسر دي په بند بوت
٧ هغه امير دَ راؤبيانو وه ٧ او دَ هغه ورور دَ هغه دَ خيلخانو
په موافق دَ هغو نسبنامو په مردم شماري کښې هغه سرداران
٨ يعئيل او ذکرياه ٨ او بعلع بن عزاز بن شامع بن يوئيل هغه
چه په عروعير کښې اوسيده او ترنبو او تر بعل معون پوري-
٩ ٩ او په مشرقي لوري په نهر فرات دَ بيابان تر مدخل پوري
اوسيده ځکه چه ځاروي دَدوي په زمکې دَ جلعاد کښې ډير شول-
١٠ ١٠ او دَ شاؤل په ورځو کښې له هاجريانو سره جنګيدل او هغوي
په لاس دَدوي پريوتل او دَدوي په خيمو کښې اوسيدل دَ جلعاد
١١ دَ ټول نمرخاته په اطرافو کښې ١١ او زامن دَ جاد دَدوي په مقابل

دَ باشان په زمکي کښې اوسيدل تر سلخه پورې ١٢ يوئيل هغه ١٢
سردار او دويم شافام او يعناي او شافاط په باشان کښې ـ
١٣ او دَ دوي ورونړه موافق دَ کورونو دَ دوي دَ پلارونو ميکائيل ١٣
او مشلام او شبع او يورِي او يعکان او زيع او عبير اوه
١٤ دغه زامن دَ ابيحائل بن حوري بن ياروح بن جلعاد بن ميکائيل ١٤
بن يشيشاي بنِ يحدو بنِ بوز ١٥ او اخي بن عبدئيل بن جوني ١٥
سردار دَ کور دَ دوي دَ پلارونو ١٦ او دوي په جلعاد کښې په ١٦
باشان کښې او دَ هغه په کليو کښې او په ټولو څراګاهو دَ
شارون دَ هغو په وتلو کښې اوسيدل ١٧ هغه ټول دَ يوتام ١٧
بادشاه دَ يهودا په ورځو کښې او دَ يربعام بادشاه دَ اسرائيل
په ورځو کښې په مردم شماري کښې وليکلي شول
١٨ دَ راوبين زامن او جاديان او نيمه فرقه دَ منسّي له ١٨
بناغليو کسانو نه چه ډالونه او توري ئې اخستل او لندئ کړوولي
او جنګ آموخته وُو څلور څلويښت زره او اوه سوه او شپيته
وُو چه په لشکر وتلي وُو ١٩ او له هاجرانو سره ئې جنګ وکړ ١٩
او له يطور او نافيش او ناداب سره ٢٠ او دوي په هغو برئ ٢٠
بياموند او هاجران او ټول چه ورسره وُو دَ دوي په لاس کښې
ورکړي شول ځکه چه په جنګ کښې ئې الله ته ناره وکړه او ده
دَ دوي زاري ئې واوريدله ځکه چه دوي په هغه توکل وکړ ٢١ او ٢١
دَ دوي ګلي ئې بيا راوړلي اوښان ئې پنځوس زره او ګډي ئې دوه
سوه پنځوس زره او خرونه ئې دوه زره او دَ سړو ځانونه سل زره
٢٢ ځکه چه ډير وژلي پريوتل ځکه چه دا جنګ له الله وه او ٢٢
دوي دَ هغو په ځايونو کښې تر بنديوانئ پورې اوسيدل
٢٣ او زامن دَ نيمي فرقي دَ منسّي په زمکه اوسيدل او له ٢٣
بادشاه تر بعل حرمو نه ډير شول او تر سينر او دَ حرمون تر غره

۲۴ پوري ۲۴ او دغه دَدوي دَ پلرونو دَ کورونو سرداران دِي عيفر
او يشعِي او اليئيل او عزرئيل او يرمياه او هودوياه او يحدئيل
کسان جبّاران دَ قوّت او نامداران کسان او دَ خپلو پلرونو دَ
۲۵ کورونو سرداران ۲۵ او دوي دَ خپلو پلرونو دَ الله خيانت وکړ او
دَ زمکي دَ قومونو په خدايانو پسي ئي زِنا وکړه هغوي چه خداوند
۲۶ دَدوي دَ وړاندِ برباد کړل ۲۶ خداوند الله دَ اسرائيل روح دَ
پول بادشاه دَ اشور او روح دَ تلغث فلناسر بادشاه دَ اشور
لښاوه نو راؤبين او جاد او نيمه فرقه دَ منسّي ئي بنديان کړل
اوحلح او حابور او حارا او رود دَ جوزان ته ئي راوستل تر نن ورځي پوري

# شپږم باب

۱ ۲ آ دَ لاوي زامن جرشون او قهات او مراري ۲ او دَ قهات زامن
۳ عمرام او يِضهار او حبرون او عزئيل ۳ او دَ عمرام زامن هارون
او موسىٰ او مريم او دَ هارون زامن ناداب او ابيهو او اليعازار
۴ او ايثامار ۴ اليعازار فينحاس وزيږاوه او فينحاس ابيشوع وزيږاوه
۵ ۶ او بقّي عزّي وزيږاوه ۶ او عزّي زرحياه وزيږاوه او زرحياه مرايوت
۷ وزيږاوه ۷ او مرايوت امرياه وزيږاوه او امرياه اخيطوب وزيږاوه
۸ ۸ او اخطوب صدوق وزيږاوه او صدوق او اخيمعض وزيږاوه
۹ ۱۰ ۹ او اخيمعض عزرياه وزيږاوه او عزرياه يوحنان وزيږاوه ۱۰ او
يوحنان عزرياه وزيږاوه او داهغه دِي چه کوهني ئي وکړه په هغه
بيت کښ چه سليمان په اورشليم کښ بنا کړ او عزرياه امرياه
۱۲ وزيږاوه او امرياه اخيطوب وزيږاوه ۱۲ او اخيطوب صادوق
۱۳ وزيږاوه او صادوق شلوم وزيږاوه ۱۳ او شلوم حلقياه وزيږاوه
۱۴ او حلقياه عزرياه وزيږاوه ۱۴ او عزرياه سراياه وزيږاوه او سراياه
۱۵ يهوصادق وزيږاوه ۱۵ او يهوصادق چه خداوند يهوداه او اورشليم

به لاس دَ نبوکدنضر ورکړل په بندیواني لاړ شول
۱۶ دَ لاوي زامن جیرشوم او قهات او مراري ۱۷ او دا ۱۶ ۱۷
دَ جیرشوم دَ زامنو نومونه دِي لبني او شمعي ۱۸ او دَ قهات ۱۸
زامن عمرام او یظهار او حبرون او عزیئیل ۱۹ او دَ مراري زامن ۱۹
محلي او مُشي او دا خیلخانې دِي دَ لاویانو موافق دَ پلارونو
دَ دوي ۲۰ دَ جیرشوم لبني زوي دَده او یحث زوي دَده او زمه ۲۰
زوي دَده ۲۱ او یواخ زوي دَده او عیدو زوي دَده او زراح زوي ۲۱
دَده او یاترای زوي دَده ۲۲ او دَ قهات زامن عمیناداب زوي دده ۲۲
او قورح زوي دَده او امیر زوي دَده ۲۳ او القاناه زوي دَده ۲۳
او ابیاصاف زوي دده او اسیر زوي دَده ۲۴ او تحت زوي دَده ۲۴
او ریئیل زوي دَده او عزیاه زوي دَده او شاؤل زوي دَده
۲۵ او دَ القاناه زامن عماسا او اخیموت ۲۶ او القاناه زامن دَ ۲۵ ۲۶
القاناه څوفي زوي دَده او نحث زوي دَده ۲۷ او الیاب زوي ۲۷
دَده او یروحام زوي دَده القاناه زوي دَده ۲۸ او زامن دَ ۲۸
شموئیل مشر یوئیل (وشني) او ابیاه ۲۹ دَ مراري زامن محلي ۲۹
او لبني زوي دَده او شمعي زوي دَده او عزّاه زوي دَده ۳۰ شمعي ۳۰
زوي دَده او حجیاه زوي دَده او عسایاه زوي دَده ۳۱ او دا ۳۱
هغه دِي چه داؤد دَ سرود په خواه ودرول دَ خداوند په کور
کښ پس له هغه چه صندوق قرار شه ۳۲ او دغو به دَ جمع ۳۲
کیدلو دَ خیمي دَ مسکن دَ وړاندِ په سرود سره خدمت کاوه
تر هغه پوري چه سلیمان بیت یهوه بنا کړ په اورشلیم کښ
او دوي دَ خاندان په موافق دَ هغو په خدمت ودریدل ۳۳ او ۳۳
دا هغه دِي چه ولاړ وُو او زامن ئې له بني قهاتیانو هیمان مغنّي
زوي دَ یوئیل زوي دَ شموئیل ۳۴ زوي دَ القانه زوي دَ یروحام ۳۴
زوي دَ الیئیل زوي دَ توح ۳۵ زوي دَ څوف زوي دَ القانه زوي ۳۵

۳۶ دَ محث زوي دَ عماشي ۳۶ زوي دَ القانه زوي دَ يوئيل زوي دَ
۳۷ عزرياه زوي دَ ثفنياه ۳۷ زوي دَ تحث زوي دَ اسير زوي دَ
۳۸ ابياصاف زوي دَ قورح ۳۸ بن يصهار زوي دَ قهات زوي دَ
۳۹ لاوي زوي دَ اسرائيل ۳۹ او دَده ورور اصاف هغه چه دَده
۴۰ به ښي لوري به ودريده يعني اصاف بن بركيا بن شمعا ۴۰ بن
۴۱ ميكائيل بن بعسياه بن ملكياه ۴۱ اثني بن زارح بن عداياه
۴۲ ۴۳ ۴۲ بن ايثان بن زمه بن شمعي ۴۳ بن يحث بن جيرشون بن
۴۴ لاوي ۴۴ او دَ مراري زامن ورونړه دَدوي په كيڼ لوري ايثان
۴۵ بن قيشي بن عبدي بن ملوك ۴۵ بن حشبياه بن امصياه بن
۴۶ حلقياه ۴۶ بن امصي بن باني بن شامر بن محلي بن موشي بن مراري
۴۷ بن لاوي ۴۷ او دَدوي ورونړه هغه لاويان چه دَ بيت الله دَ مسكن
۴۹ دَ هر خدمت دَپاره وركړي شول ۴۹ او هارون او دَده زامن په
منبح باندِ به ئې سيزونكي باول او په منبح باندِ ئې بخور سيځل سره
له ټوله كار دَ قدس الاقداس او په اسرائيل دَ كفاري دَپاره موافق
۵۰ دَ هر هغه چه موسىٰ بنده دَ الله پرِ فرمان كړي وه ۵۰ او دغه
دَ هارون زامن دِي اليعازار زوي دَده او فنيحاس زوي دَده او
۵۱ ابيشوع زوي دَده ۵۱ او بقي زوي دَده او عزي زوي دَده او زرحيا
۵۲ زوي دَده ۵۲ او مرايوث زوي دَده او امرياه زوي دَده او اخيطوب
۵۳ زوي دَده ۵۳ صادوق زوي دَده او اخيمعص زوي دده
۵۴ ۵۴ او دا دَدوي استوګني دِي دَدوي دَ قلعو دَدوي په
حدونو دَ بني هارون او دَ قهاتيانو دَ خيلخاني څكه چه دوي لره
۵۵ هسك وه ۵۵ او دوي ته ئې دَ يهوداه په زمكه كښ حبرون او دَ
۵۶ هغه چاپيره څراګاهونه وركړل ۵۶ ليكن دَ ښهر پټي او حصارون
۵۷ ئې كالب زوي دَ يفنه ته وركړل ۵۷ او بني هارون ته ئې دَ پناګاه
ښهرونه وركړل حبرون لبناه او دَ هغه څراګاه او يتير او اشتموع

او دَ دغه ثراکاهونه ۵۸ او حلین او دَ هغه ثراکاهونه او دبیر ۵۸
او دَ هغه ثراکاهونه ۵۹ او عاشان او دَ هغه ثراکاهونه او ۵۹
بیت شمسي او ثراکاهونه ئي ۶۰ او دَ بنیامین له فرقي نه جبع او ۶۰
ثراکاهونه ئي او عَلَمَت او ثراکاهونه ئي او عناثوث او ثراکاهونه
ئي ټول ښهرونه دَ هغو دیارلس ښهرونه موافق دَ خیلخانو
دَ دوي ۶۱ او بني قهات لره هغه چه باقي وُو له خیلخاني دَ ۶۱
فرقي له نیمي فرقي نه نیم منسّي په هِسک سره لس ښهرونه
۶۲ او بنِي جیرشوم لره موافق دَ خیلخانو دَ دوي له فرقي دَ یساکر ۶۲
نه او له فرقي دَ اشیر او له فرقي دَ نفتالي او له فرقي دَ منسّي
په باشان کښي دیارلس ښهرونه ۶۳ بني مراري ته موافق دَ ۶۳
خیلخانو دَ دوي له فرقي دَ راؤبین او له فرقي دَ جاد او له فرقي دَ
زبولونه په هِسک سره دولس ښهرونه ۶۴ نو دَ اسرائیل زامنو ۶۴
لاویانو ته دغه ښهرونه او ثراکاهونه ئي ورکړل ۶۵ او دوي په ۶۵
هسک سره له فرقي دَ یهوداه او له فرقي دَ بني شمعون او له فرقي
دَ بني بنیامین دغه ښهرونه چه په دي نومونو بللي شوي دِي
ورکړل ۶۶ او ځنِ خیلخاني دَ بني قهات ته دَ دوي دَ حد ښهرونه ۶۶
له فرقي دَ افرائیم نه وشول ۶۷ او دوي ته ئي دَ پناه ښهرونه ورکړل ۶۷
شکیم او ثراکاهونه ئي دَ افرائیم په غره کښي او جزر او دَ هغه
ثراکاهونه ۶۸ یاقمعام او دَ هغه ثراکاهونه او بیت حورون او ۶۸
ثراکاهونه ئي ۶۹ او ایلون او ثراکاهونه ئي او جتّه رمون او ۶۹
ثراکاهونه ئي ۷۰ او له نیمي فرقي دَ منسّي عانیر او ثراکاهونه ئي ۷۰
او بلعام او ثراکاهونه ئي دَ بني قهات دَ خیلخاني دَ باقیه دَپاره
۷۱ بنِي جیرشوم له نیمي فرقي دَ منسّي جولان په باشان کښي او ۷۱
ثراکاهونه ئي ۷۲ او دَ یساکر له فرقي نه قادش او ثراکاهونه ئي او ۷۲
دابرّه او ثراکاهونه ئي ۷۳ او راموت او ثراکاهونه ئي او عانیم او ۷۳

او عستاروت او ثراکاهونه ئي

۷۴ څراګاهونه ئې ۷۴ او له فرقې دَ اشیر نه ماشال او څراګاهونه ئې
۷۵ او عبدون او څراګاهونه ئې ۷۵ او حوقوق او څراګاهونه ئې او
۷۶ رحوب او څراګاهونه ئې ۷۶ او له فرقې دَ نفتالي نه قادش په
جلیل کښې او څراګاهونه ئې او حمون او څراګاهونه ئې او
۷۷ قریاتایم او څراګاهونه ئې ۷۷ دَ بني مراري دپاره چه باقي دي دَ
زبولون له فرقې نه رمونو او څراګاهونو ئې او تابور او څراګاهونه
۷۸ ئې ۷۸ او په پوري خوا دَ اردن اریحا دَ نمرخاته په خوا له فرقې
دَ راؤبین باصر په بیابان کښې او څراګاهونه ئې او یهصه
۷۹ او څراګاهونه ئې ۷۹ او قدیموث او څراګاهونه ئې او میفعث
۸۰ او څراګاهونه ئې ۸۰ او دَ جاد له فرقې نه راموث په جلعاد کښې
۸۱ او څراګاهونه ئې او محنایم او څراګاهونه ئې ۸۱ او حشبون
او څراګاهونه ئې او یعزیر او څراګاهونه ئې ✣

# اوم باب

۱ آنو دَ یساکر زامن تولاع او فواه یاشوب او شمرون څلور-
۲ ۲ او دَ تولاع زامن عزّي او رفایاه او یوئیل او یحماي او ابسام
او شموئیل دَ دوي دَ پلار تولاع دَ کور سرداران جبّاران دَ قوّت
موافق دَ نسب‌نامي دَ دوي دَ هغو شمار دَ داؤد په ورځو کښې
۳ دوویشت زره شپږ سوه وه ۳ او دَ عزّي زامن یزرحیاه او دَ
یزرحیاه زامن میکائیل او عوبدیاه او یوئیل او شماه پنځه
۴ ټول سرداران ۴ او سره دَ دوي موافق دَ نسب‌نامو دَ دوي او دَ
دوي دَ پلرونو کورونه ډیري دَ فوزونو دَ جنګ شپږ دیرش
۵ زره ځکه چه دوي ښځې او هلکان ډیر کړل ۵ او دَ دوي ورونړه
موافق دَ ټولو خیلخانو دَ یسّاکار جبّاران دَ قوّت اوه اتیا زره ټول
په مردم شماري دَ دوي کښې

۶ بنیامین لره بلع بکر او یدیعئیل دري ۷ او دَ بلع زامن اصبون ۶
او عزّي او عزیئیل او یریموث او عبري پنځه سرداران دَ کور دَ پلرونو
جباران دَ قوّت او دوي په مردم شماري دوه ویشت زره او څلور
دیرش دُوَ ۸ او دَ بکر زامن میراه او یوعاش او الیعزر او الیوعیني ۸
عامري او یریموث او ابیاه او عناتوت او علامث دا ټول دَ بکر
زامن دِي ۹ او مردم شماري دَدوي دَ نسب‌نامو په موافق سرداران ۹
دَدوي دَ پلارونو دَ کورونو جبّاران دَ قوّت شل زره او دوه سوه
۱۰ او دَ یدیعئیل زامن بلهان او دَ بلهان زامن یعوش او بنیامین ۱۰
او ایهود او کنعنه او زیتان او ترشیش او اخیشاحر ۱۱ دا ټول ۱۱
دَ یدیعئیل زامن موافق دَ سردارانو دَ پلارونو جبّاران دَ قوّت
اوه لس زره او دوه سوه چه جنګ ته په لښکر وتل ۱۲ او شفّیم ۱۲
او حفّیم بني عیر او حوشیم بن احیر ۱۳ دَ نفتالي زامن یحصیئیل ۱۳
او جوني او یصر او شلوم زامن دَ بلهه ۱۴ دَ منسّي زامن دَ ۱۴
اسرائیل هغه چه ارامي سریتي دده وزیږاوه ماکیر پلار دَ جلعاد
وزیږاوه ۱۵ او ماکیر دَ شفیم او دَ حفیم خور ښځه واخسته او دده ۱۵
دَ خور نُوم معکه وه او دَ هغه دویم نُوم صلفحاد وه او صلفحاد لره لونړه وشولې
۱۶ او معکه ښځي دَ ماکیر زوي وزیږاوه او دَ هغه نوم ئي پرش ۱۶
وباله او دَده دَ ورور نُوم شارش او زامن ئي اولام او راقم ۱۷ او ۱۷
دَ اولام زوي بدان دغه دَ جلعاد زامن دِي دَ زوي دَ ماکیر دَ زوي
دَ منسّي ۱۸ او دَ دغه خور همولکث ایشهود او ابیعزر او محلاه ۱۸
وزیږول ۱۹ او دَ شمیداع زامن اخیان او شکیم او لقي او انعام ۱۹
۲۰ او دَ افرائیم زامن شوتالح او برد زوي ئي او تحث زوي ۲۰
ئي او العاداه زوي ئي او تحث زوي ئي ۲۱ او زاباد زوي ئي او ۲۱
شوتالح زوي ئي او عزر او العد چه دَ جت کسان چه په هغه
زمکه کښې زیږیدلي وُوُ قتل ئي کړل ځکه چه دوي کوز شول چه

۲۲ دَدوي څارِوي بوزِي ۲۲ او دَ دوي پلار افرائيمِ ډېري ورځي وِير کاوه
۲۳ او ورونړه ئي ورغلل چه تسلّي ورکړي ۲۳ او خپلي ښځي ته ورغي
او هغه حامله شوه او زوي ئي وزيږاوه او دَ هغه نوم ئي بريعه
۲۴ وباله ځکه چه دَده په کور کښ بلا وه ۲۴ او دَ هغه لُور شيره
۲۵ او دي کوزنئ او پاسنئ بيتِ حورون بنا کړل او عزّن شيره ۲۵ او
اورفح زوي ئي اورشف زوي ئي او تلح زوي ئي او تاحن زوي ئي
۲۶ ۲۷ لعدان زوي ئي عميهود زوي ئي اليشامع زوي ئي ۲۷ او نون
۲۸ زوي ئي او يهوشوع زوي ئي ۲۸ او دَ دوي اخستنه او دَ دوي
استوګني بيت ايل او کلي ئي او دَ نمرخاته په لُوري نعران او په
مغرب جزر او کلي ئي او شکم او کلي ئي تر عزه پوري او کلي ئي
۲۹ ۲۹ او په خواه دَ بن منسّي بيت شان او کلي ئي او تعنک او
کلي ئي مجدو او کلي ئي او دور او کلي ئي په دغه کښ دَ يوسف
بنِ اسرائيل زامن اوسيدل
۳۰ ۳۰ دَ اشير زامن يمناه او يشواه او يشوي او بريعه
۳۱ او دَ دوي خور سوح ۳۱ او دَ بريعه زامن حبر او ملکئيل هغه
۳۲ پلار دَ برزاوث ۳۲ او حبر يفلاط وزيږاوه او شومير او حوثام او
۳۳ شوعا خور ئي ۳۳ دَ يفلاط زامن پاسک او بمهال او عشوات دَغه
۳۴ دَ يفلاط زامن دِي ۳۴ او دَ شامر زامن اخي او روهجه او يحبه
۳۵ او ارام ۳۵ او دَ هيلام زامن ورور ئي څوفح او يمناع او شالش
۳۶ او عامل ۳۶ او دَ څوفح زامن سوح او هرنفر او شوعال او بيري او
۳۷ ۳۸ يمره ۳۷ بصر او هود او شمّا او شلشاه او يثران او بيرا ۳۸ او دَ يثر
۳۹ زامن يفنّه او فسپه او آرا ۳۹ او دَ علاّ زامن ارح او حنئيل او رځيا
۴۰ ۴۰ دا ټول دَ اشير زامن سرداران دَ کورونو دَ پلارونو غوره شوي
جبّاران دَ قوّت سرداران دَ رئيسانو او دَ هغو مردم شماري په
لښکر په جنګ دَ هغو کسانو شمار شپږويشت زرد وه ۞

# اتم باب

١ او بنیامین بالع مشر خیل وزیږاوه او اشبیل دویم او اخرخ ١
دریم ٢ نوحه څلورم او رافاه پنځم ٣ او دَ بالع زامن وُو ادّار ٢ ٣
او جیرا او ابیهود ٤ او ابیشوع او نعمان او اخوخ ٥ او جیرا او ٤ ٥
شفوفان او حورام ٦ او دغه بنِ اخود دِي دغه سرداران دَ پلارونو ٦
اوسیدونکِي دَ جبع ماناحث ته بوتلل ٧ او نعمان او اخیاه او ٧
جیرا او دغه دوی جلاوطنه کړل او عزّا او اخیحد وزیږول ٨ او ٨
شحرایم دَ مواب په میدان کښ پس دَ دوی له استولو وزیږول
بنځې ئې حوشیم او بعراوي ٩ او له خودش بنځې ئې یوباب او ظبیا ٩
او میشا او ملکام ١٠ او یعوص او شکیاه او مرماه وزیږیدل ١٠
دغه زامن ئې سرداران دَ پلرونو دِي ١١ او له حوشیم نه ئې ابیطوب ١١
او الفعل وزیږیدل ١٢ او دَ الفعل زامن عابر او مشعام او ١٢
شامر دغه چه اونو او لود او کلي ئې بنا کړل ١٣ او بریعه او شمعه ١٣
او دغه دایالون دَ اوسیدونکو دَ پلارونو سرداران دِي او
دَغو دَ جت اوسیدونکِي وشړل ١٤ او اخیو او شاشق او ١٤
یریموت ١٥ او زبدیاه او عراد او عادر ١٦ میخائیل او یشپه او ١٥ ١٦
یوحا دَ بریعه زامن ١٧ زبدیاه او مشلام او حزقي او حابر ١٨ او ١٧ ١٨
یشمرِي او یزلیاه او یوباب زامن دَ الفعل ١٩ او یاقیم او زکرِي ١٩
او زبدِي ٢٠ او الیعني او ظلتِي او یلئیل ٢١ او عدایاه او برایاه ٢٠ ٢١
او شمرث زامن دَ شمعِي ٢٢ او یشپان او عیبر او الیئیل- ٢٢
٢٣ او عبدون او زکري او حانان ٢٤ او حننیاه او عیلام او ٢٣ ٢٤
عنثوثیا ٢٥ او یفدیاه او فنوئیل زامن دَ شاشق ٢٦ او شمشرِي ٢٥ ٢٦
او شحریاه او عثلیاه ٢٧ او یعرشیاه او ایلیاه او زکرِي زامن ٢٧
دَ یروحام ٢٨ دغه یددِي سرداران موافق دَ نسبنامو دَ دوی ٢٨

۲۹ سرداران وُو دغه په اورشلیم کښې اوسیدل ۲۹ او په جبعون
۳۰ دَ جبعون پلار اوسیده او دَ ښځې نوم ئې معکاه وه ۳۰ او مشر
۳۱ زوي ئې عبدون او صور او قیش او بعل او ناداب ۳۱ او
۳۲ جدور او اخیو او زاکر ۳۲ او مقلوث شماه وزیږاوه او دوي
هم له ورونړو خپلو سره په اورشلیم کښې اوسیدل مقابل
۳۳ دَ ورونړو دَ دوي ۳۳ او نیر قیس وزیږاوه او قیس شاؤل
وزیږاوه او شاؤل یهوناثان وزیږاوه او ملکیشوع او ابیناداب
۳۴ او اشبعل وزیږول ۳۴ او دَ یهوناثان زوي مریب‌باعل او
۳۵ مریب‌باعل میکاه وزیږاوه ۳۵ او دَ میکاه زامن پیثون او ملک
۳۶ او تاریع او احاز ۳۶ او احاز یهوعداه وزیږاوه او یهوعداه عالمث
وزیږاوه او عزماوث او زمري وزیږول او زمري موصا وزیږاوه
۳۷ ۳۷ او موصا بعناه وزیږاوه او رافه زوي ئې او لعاسه زوي
۳۸ ئې او اصل زوي ئې ۳۸ او اصل لره شپږ زامن وُو او دا ئې
نومونه دِي عزریقام او بوکرو او اسمعیل او شعریاه او عوبدیاه
۳۹ او حانان دا ټول دَ اصل زامن دِي ۳۹ او دَ ده دَ ورور عاشق
زامن اولام ئې مشر او یعوش هغه دویم او الیفلط هغه دریم
۴۰ ۴۰ او دَ اولام زامن جبّاران دَ قوّت کسان وُو تیرانداز وُو
ډیر زامن ئې لرل او زامن دَ زامنو ئې یو سل پنځوس دا ټول دَ
بنیامین له اولاد نه وُو *

# نهم باب

۱ ۱ او ټول اسرائیل په مردم شمارئ شول او کوره دَ اسرائیل
دَ بادشاهانو په کتاب کښې لیکلي شوي دِي او یهوداه خیل
۲ خیانت په سبب بابل ته په بند بوتلي شه ۲ او اول اوسیدونکي
چه په خپلو آخستنو کښې په خپلو ښهرونو کښې اسرائیلي وُو
۳ هغه کوهنان او هغه لاویان او هغه نثنیم وُو ۳ او له بني یهوداه

او له بني بنيامين او له بني افرائيم او له منسّي نه په اورشليم
كښې اوسيدل ۴ عوتاي بن عميهود بن عامري بن امري بن باني ۴
بني فارص له بني يهودا نه ۵ او له هغو سيلونيانو نه عسايا ۵
هغه مشر او دَده زامن ۶ او له بني زارح نه يعوئيل او دَده ۶
ورونړه شپږ سوه نوي ۷ او له بني بنيامين صلو بن مُشلام ۷
بن هودوياه بن هسنواه ۸ او يبنياه بن يروحام او ايلاه بن ۸
عزّي بن مكري مشلام بن شفطياه بن رعوئيل بن يبنياه ۹ او ۹
دَ دوي ورونړه موافق دَ نسب نامو دَ دوي نه نه سوه او
شپږ پنځوس دا ټول كسان پدري سرداران دَ خپلو پلارونو
دَ كورونو

۱۰ او له كوهينانو يدعياه او يهوياريب او ياكين ۱۱ او ۱۰ ۱۱
عزرياه بن حلقياه بن مشلام بن صادوق بن مرايوث بن اخطوب
امير دَ بيت الله ۱۲ او عداياه بن يروحام بن پشحور بن ملكياه ۱۲
او معسي بن عديئيل بن يحزيره بن مشلام بن مسليميث
بن امير ۱۳ او دَ دوي ورونړه سرداران دَ دوي دَ پلارونو دَ كورونو ۱۳
يو زر اوه سوه او شپيته جبّاران دَ قوّت كاريگران دَ بيت الله
دَ خدمت دَ پاره ۱۴ او له لاويانو شمعياه زوي دَ حشوب ۱۴
زوي دَ عزريقام زوي دَ حشبياه له بني مراري نه ۱۵ او بقبقر ۱۵
۱۶ او عوبدياه بن شمعياه بن جلال بن يدوتون او بركياه بن آسا بن القانه چه دَ نطوفاتيانو په كلو كښې اوسيده ۱۶
حرش او جلال او متنياه بن ميكا بن زكري بن آصاف ۱۷ او ۱۷
دربانان شلوم او عقوب او طلمون او اخيمان او دَ دوي ورونړه
شلوم هغه سردار ۱۸ او لا تر اوسه پوري دغه دَ بادشاه په ۱۸
دروازي كښې دَ نمرخاته په لوري وُو دغه دَ بني لاوي دَ ډيرو
دربانان وُو ۱۹ او شلوم بن قوري بن ابياصاف بن قورح او ۱۹
دَده (ورونړه) دَ پلار كورونه هغه قورحيان دَ خدمت په كاريگري باندي
ساتونكي دَ آستانې دَ خيمي او پلارونه ئې په ډيري كښې ساتونكي

۲۰ دننه وتني ۲۰ او فنیحاس زوي دَ العازار وړاندې په دوي باندِ
۲۱ امیر وه او خداوند ورسره وه ۲۱ او زکریاه زوي دَ مشلمیاه
۲۲ دَ اجتماع دَ خیمي دَ مدخل درواني وه ۲۲ دغه ټول واړه
غوره شوي دروانچیان په آستانو دوه سوه دولس وُو دغه
په خپلو حصارونو کښ مردم شمارِي کړي شوي وُو دوي داؤد
۲۳ او رؤیا لیدونکي شموئیل دَدوي په امانت کښ وډرول ۲۳ او
دوي او دَدوي زامن دَ بیتِ یهوه په کور دَ خیمي په دروازي
۲۴ دَ ساتني دَپاره وُو ۲۴ په څلورو طرفونو دروانچیان وُو په مشرق
۲۵ او په مغرب او په شمال او په جنوب ۲۵ او دَدوي وروڼړه په
خپلو کلیو کښ وُو چه په اومه ورځ وار په وار راتلِي او ورسره
۲۶ وِي ۲۶ ځکه چه دغه په امانت باندِ دَ جبّار دروانچیانو سرداران
وُو دا څلور لاویان او په خونو او په خزانو دَ بیت‌الله وُو -
۲۷ ۲۷ او دَ بیت‌الله په گرداگرد ئې شپه تیره کوله ځکه چه په دوي
۲۸ باندِ ساتنه وه او په دوي باندِ هر صباح پرانتنه وَه ۲۸ او ځني
دَدوي دَ خدمت په لوښو ځکه چه دوي به هغه په شمار سره
۲۹ ننباسل او په شمار به ئې یستل ۲۹ او ځني دَدوي مقرّر وُو
په کالیو او په ټولو پاکو کالیو او په میدي او په شرابو او
۳۰ په تیلو او په لوبانو او په بلسانو ۳۰ او ځني له بني کوهنانو
۳۱ به دَ بلسانو مرهم عطارول ۳۱ متثیاه له لاویانو هغه دَ شلوم
۳۲ هغه دَ قورحي مشروه په هغو جوړ شوِیو غُنزابنیو ۳۲ او ځني
له قهاتیانو دَدوي له وروڼرو، به قطاري ډوډۍ په هر سبّت کښ
۳۳ تیاري کړي ۳۳ او دا هغه سرودګران دِي سرداران دَ پلارونو
دَ لاویانو په خونو کښ او دوي معاف شوِي وُو ځکه چه ورځ او
۳۴ شپه به په دوي باندِ داکار وه ۳۴ دغه سرداران پلارونه دَ
لاویانو دِي موافق دَ سردارانو دَدوي دَ نسب‌نامو دغه په اورشلیم

کښې اوسیدل
٣٥ او په جبعون کښې پلار دَ جبعون اوسیده یعوئیل او ٣٥
دَدغه دَ ښځې نوم معکه وه ٣٦ او دَده مشر زوي عبدون وه ٣٦
او صور او قیس او بعل او نیر او ناداب ٣٧ او جدور او اخیو ٣٧
او زکریاه او مقلوت ٣٨ او مقلوت شمام وزیږاوه او دوي هم ٣٨
په مقابل دَ خپلو ورونړو په اورشلیم کښې له خپلو ورونړو
سره اوسیدل ٣٩ او نیر قیس وزیږاوه او شاؤل یهوناثان ٣٩
او ملکشوع او ابیناداب او اشباعل ٤٠ او دَ یوناثان زوي مریباعل ٤٠
او مریباعل میکاه وزیږاوه ٤١ او دَ میکاه زامن پیثون او ملک ٤١
او تحریع ٤٢ او احاز یعراه وزیږاوه او یعراه علمث او عزماوت ٤٢
او زمري وزیږاول او زمري موصا وزیږاوه ٤٣ او موصا بنعا ٤٣
وزیږاوه او رفایا زوي ئې او العسه زوي ئې او اصیل زوي
ئې ٤٤ او اصیل لره شپږ زامن وُو او دا ئې نومونه دِي عزریقام ٤٤
او بوکرو او سماعیل او شعریاه او عوبدیاه او حانان دغه دَ اصیل
زامن دِي ❊

# لسم باب

١ او فلسطیانو له اسرائیل سره جنګ وکړ او دَ اسرائیل سړي ١
دَ فلسطیانو له مخې وتښتیدل او وژلي شوِي دَ جلبوع په غره
کښې پریوتل ٢ او فلسطیان په شاؤل او دَده په زامنو پسې ٢
ونښتل او فلسطیانو یوناثان او ابیناداب او ملکیشوع زامن
دَ شاؤل ووهل ٣ او جنګ په شاؤل سخت شه او لیندي ٣
ویشتونکي ور و رسیدل او له تیراندازو نه ژوبل شول ٤ نو ٤
شاؤل خپل وصله یوړته کونکي ته وویل چه توره دِ وکاږه او
پرې سورې مِ کړه هسې نه چه دغه نامختون راشِي او بيحرمت
مِ کړي نو دَده وصله بردار ونه غوښته ځکه چه هغه ډېر وېرېده

۵ نو شاؤل توره واخستنه او پري پريوت او مړ شه ۵ او چه
دَده وصله بردار وليد چه شاؤل مړ شه نو دغه هم په توري
۶ پريوت او مړ شه ۶ نو شاؤل او دري واړه زامن ئې مړه شول
۷ او ټوله خيلخانه ئې ورسره مړه شوله ۷ او چه دَ اسرائيل ټولو
سړيو چه په خوړ کښې ؤو وليد چه دوي وتښتيدل او شاؤل
او دَده زامن مړه شول نو خپل ښهرونه ئې پريښودل او
وتښتيدل نو فلسطيان راغله او په کښې واوسيدل
۸ ۸ او په صباح چه فلسطيان وراغله چه مړي برښه
کړي شاؤل ئې وموند او زامن ئې چه په غره دَ جِلبوعَ کښې
۹ پراته ؤو ۹ نو هغه ئې برښه کړ او سر ئې واخست او وصله
ئې او دَ فلسطيانو زمکي ته ئې چارچاپيره واستول چه خپلو
۱۰ بتانو او خلقو ته زيري ورکړي ۱۰ او دَدوي وصله ئې دَ خپلو
خدايانو په کور کښې کيښوده او دَده سر ئې دَ دجون په کور کښې
۱۱ ټک واهه ۱۱ او چه ټول يابيش جلعاد واوريده هرڅه چه
۱۲ فلسطيانو په شاؤل کړي ؤو ۱۲ نو ټول سړي دَ قوّت پورته شول
او دَ شاؤل مړي او دَده دَ زامنو مړي ئې واخستل او يابيش ته
ئې وروړل او دَده هډوکي ئې تر بطم دَ لاندِ په يابيش کښې ښخ
۱۳ کړل او اوه ورځي ئې روژه ونيوه ۱۳ او شاؤل دَ هغه خيانت په
سبب مړ شه چه له خداوند سره ئې خيانت وکړ دَ خداوند دَ
کلام په سبب چه وئې نه ساته او هم دَده دَ طلب له پريانئ
۱۴ دَ سوال ۱۴ او له خداوند ئې سوال و نه کړ نو دي ئې مړ کړ
او ملکيت ئې داؤد بن يسّي ته وګرزاوه *

## يولسم باب

۱ ۱ او ټول اسرائيل داؤد ته په حبرون کښې راجمع شول ويل ئې

۲ کوره مونږ ستا هډوکي او غوښه يُو ۲ او هم پرون او هم لا
وړاندِ هم دَ شاؤل بادشاه په بادشاه کيدلو کښ ته هغه
وي چه اسرائيل به دِ ويستل او ننه ويستل او خداوند الله
ستا درته وويل چه ته به زما اُمّت اسرائيل وڅروي او ته به
۳ زما په اُمّت اسرائيل باندِ آمير شي ۳ او ټول سپين ږيري دَ اسرائيل
بادشاه ته حبرون ته ورغلل او داؤد له دوي سره په حبرون کښ
عهد وکړ دَ خداوند دَ وړاندِ او داؤد يُ په اسرائيل بادشاه
۴ مسحه کړ دَ خداوند دَ کلام په موافق په لاس دَ شموئيل ۴ او
داؤد او ټول اسرائيل اورشليم ته يعني يبوس ته لاړل او هلته
۵ يبوسيان وُو اوسيدونکي دَ زمکي ۵ اودَ يبوس اوسيدونکو داؤد
ته وويل چه ته به دلته رانه شي نو داؤد دَ صيحون قلا ونيوه
۶ چه دغه دَ داؤد ښهر دَي ۶ او داؤد وويل هغه چه اول يبوسيان
ووهي هم هغه به سر او سردار وي نو يوآب زوي دَ ضرويه
۷ اول وختو او سر شه ۷ او داؤد په قلا کښ تم شه دَدي دَپاره
۸ يُ دَ داؤد ښهر وباله ۸ او دَ هغه په ګرداګرد يُ ښهر بنا کړ له ميلو
۹ نه دَ هغه تر ګرداګرد پوري او يوآب نور ښهر نوي جوړ کړ ۹ او
داؤد به په تللو تّهٔ او لوي شه او دَ لښکرو خداوند ورسره وه
۱۰ ۱۰ او دغه سرداران پهلوانان دَ داؤد دِي چه دَده سره يُ
دَده په بادشاهيَ کښ ځانونه ټينګ کړل دَ ټول اسرائيل سره
چه دي بادشاه کړي موافق دَ کلام دَ خداوند په جهت دَ اسرائيل
۱۱ ۱۱ او دا دَ هغه پهلوانانو شمار دَي چه دَ داؤد وُو يشابعام بن
حکموني سردار په دريو کښ دا هغه دي چه په دري سوو يُ خپله
۱۲ نيزه پورته کړه په يو وار يُ هغوي ووژلل ۱۲ او پس له دغه العازار
۱۳ بن دودو اخوخي دغه له هغو دريو پهلوانانو وه ۱۳ هغه له داؤد
سره په پسيدميم کښ وه او هلته فلسطيان جنګ ته سره ټول

شول او دَ هغه پښې یوه ټوټه له اوربشو ډکه وه نو امّت دَ
۱۴ فلسطیانو له مخې وتښتیدل ۱۴ او دَ هغه ټوټې په مینځ کښې ئې
ځانونه ودرول او هغه ئې خلاص کړ او فلسطیان ئې ووهل
۱۵ او خداوند لوی خلاصون ورکړ ۱۵ او له هغو دیرشو سردارانو
نه دغه درې پرښې ته داؤد ته راکوز شول دَ عدلّام مغارې
ته او دَ فلسطیانو لښکر دَ رفائیانو په خوړ کښې ډیره شه
۱۶ ۱۶ او هغه وقت داؤد په ځاؤدې کښې وه او دَ فلسطیانو لښکر
۱۷ هغه وقت په بیت‌لحم کښې وه ۱۷ او داؤد خواست وکړ وئې ویل
چه څوک به په ما له هغه کوهې دَ بیت‌لحم نه چه دروازې
۱۸ څخه دَی اوبه وڅښوې ۱۸ نو هغه دریو دَ فلسطیانو لښکر
څیرې کړ او اوبه ئې دَ بیتِ‌لحم له کوهې نه چه دروازې څخه
وه راوکښلې او وائې خستلې او داؤد ته ئې ورورې او داؤد
۱۹ و نه غوښتل چه و ئې څښې بلکه خداوند لره ئې توی کړې ۱۹ او
و ئې ویل چه دا دِ ما لره نه وِې ځما دَ الله له لورې چه داسې
وکړم زه به دَ دغو کسانو وینې دَ دوی په ځانونو وڅښم ځکه چه
دوی په خپلو ځانونو راوړې دِي او ده و نه غوښتل چه و ئې څښې
۲۰ را هغه دِي چه هغو دریو پهلوانانو وکړل ۲۰ او ابیشي ورور
وه او ده نیزه خپله په دریو
دَ یوآب سردار دَ دغو دریو سوو پورته کړه او مړه ئې کړه او وه او ده نیزه خپله په دریو
۲۱ دَده نوُم په هغو دریو کښې وه ۲۱ چه دغو دریو کښې له دوو
نه زیات عزّت‌دار وه او هغو لره سردار وه مګر هغو دریو
۲۲ ته نه رسیده ۲۲ بنایاهو بنِ یهویاداع زوی دَ سړِي دَ قوّت
وه له قبځئیل چه ډیر کارونه ئې کول دا هغه دَی چه دوه
دَ ارئیل دَ مواب ئې مړه کړه او دا هغه دَی چه کوز شه
او زمری ئې دَ واورې په ورځ دَ ډوغل په مینځ کښې وواهه
۲۳ ۲۳ او دا هغه دَی چه مصرې ئې وواهه سړې چه قد ئې پنځه

هاتي وه او دَ مصري په لاس کښې نيزه وه لکه لټ دَ جولاګانو
او دي هغه ته په همسا سره ورکوز شه او نيزه ئې دَ
مصري له لاس راکاږله او هغه ئې دَ هغه په نيزه مړ کړ -
۲۴ دا هغه کار دي چه بناياهو زوی دَ يهوياداع وکړ او دَ دره ۲۴
نُوم دَ هغو دريو پهلوانانو په منځ کښې وه ۲۵ او ګوره دا په ۲۵
هغو ديرشو کښې عزّت دار وه ليکن دَي اوّل دريو ته نه رسيده
او داؤد په خپل دربار بانډِ کېښود
۲۶ او دَ لښکر پهلوانان چه وُو عسائيل ورور دَ يواب ۲۶
او الحانان بن دودو دَ بيت لحم ۲۷ او شموث هغه هروري حيلص ۲۷
پلوني ۲۸ عيرا بن عقيش هغه تقوعي ابيعذر هغه عنثوثي - ۲۸
صبلي هغه حشاتي عيلي اخوخي ۳۰ مهري نطوفاثي خالد بن بعناه ۲۹ ۳۰
هغه نطوفاتي ۳۱ ايتي بن ربيي له جبعي دَ بن بنيامين بناياه هغه ۳۱
پرعاتوتي ۳۲ حوري دَ جاعش له رودونو ابئيل عرباثي ۳۳ عزماوث ۳۲ ۳۳
هغه بحرومي اليحبا هغه شعلوني ۳۴ هاشيم هغه جزوني يوناثان ۳۴
بن شاجي هغه هراري ۳۵ اخيام بن ساکا هغه هراري اليفال ۳۵
بن اُور ۳۶ حيفر هغه مکيراثي او اخياه هغه پلوني ۳۷ حصرو ۳۶ ۳۷
هغه کرملي نعري بن ازباي ۳۸ يوئيل ورور دَ ناثان مبحار ۳۸
بن هجري ۳۹ صلق هغه عموني ۳۹ نحري هغه بيروثي دَ يواب بن ۳۹
ضرويه وصله ورونکي ۴۰ عيرا هغه يثري جاريب هغه يثري ۴۰ ۴۱
اورياه هغه حتّي زابد بن احلائي ۴۲ عدينا بن شيزا هغه راوبيني ۴۲
سر دَ راوبيني او له دغه سره ديرش ۴۳ حانان زوي دَ معکه ۴۳
يوشافاط هغه متني ۴۴ عزيا عشتراوتي شامع او يعوئيل زامن ۴۴
دَ حوثام هغه عروعيري ۴۵ يديعيل بن شمري او يوحا ورور ۴۵
دَ هغه تيځي وه ۴۶ اليئيل هغه محويم او يريبي او يوشاوياه زامن ۴۶
دَ النعم او يثمه هغه موابي ۴۷ اليئيل او عوبيد او يعسئيل هغه موصوباياه * ۴۷

# دولسم باب

۱ ا او دا هغه دي چه داؤد ته ورغلل و ځقلغ ته او دي لا تر
اوسه دَ شاؤل بن قیس له مخ نه بند وه او دوي له پهلوانانو
۲ وُو چه په جنګ کښ مددګار وُو ۲ په لیندو وسله دار وُو
ښي لاسو والو او کیڼ لاسو والو په کاڼو او په غشو له لیندو
او له مچوغنو په ویشتولو سره دوي دَ شاؤل له ورونړو دَ
۳ بنیامینَ ۳ سَرئې اخیعزر بیا یوآش زامن دَ شماعه هغه جبعتي
او یزوئیل او فلط زامن دَ عزماوث او براکا او ییهو هغه
۴ عناتوتي ۴ او یشمعیاه هغه جبعوتي پهلوان دَ دیرشو په منځ کښ
او په هغو دیرشو باندِ او یرمیاه او یحزئیل او یوحانان او یوزاباد
۵ هغه جدیراتي ۵ او الِعوازي او یریموث او بعلیاه او شمریاهو
۶ او شفطیاهو هغه حروفي ۶ او القاناه او یشیاهو او عزرئیل
۷ او یوعزر او یاشابعام هغه قاحیان ۷ او یوعیلي او زبدیاه
۸ زامن دَ یروحام له هغه جدور نه ۸ او له جادیانو داؤد ته
وربیل شول او کوټ ته په بیابان کښ جبّاران دَ قوّت کسان
دَ لښکر صفونه تړونکي دَ ډالونو او دَ برچو سره او مخونه ئې
۹ لکه دَ زمرو مخونه او ګړندي لکه هوسئ په غرونو ۹ عیزر هغه
۱۰ سر او عوبدیاه دویم الیاب دریم ۱۰ مشمنّه څلورم یرمیاه
۱۱ ۱۲ پنځم ۱۱ عتي شپږم او الیئل اووم ۱۲ یوحنان اتم الزاباد نهم
۱۳ ۱۴ ۱۳ ارمیاهو لسم او مکبنیَ یولسم ۱۴ دغه دَ جاد له اولادَ دِي
۱۵ سرداران دَ لښکر وړوکي دَ سلو او لوي دَ زرو ۱۵ دا هغه دِي
چه په اولي میاشتې له اردنَ پوري وتل او هغه ترټولو غاړو
ډک وه او ټول خلق دَ خوړو ئې دَ مشرق او دَ مغرب په لوري
۱۶ وتښتول ۱۶ دَ بنیامین او دَ یهوداه له قوم نه دَ داؤد قلا ته

راغلل ۱۷ او داؤد دَ دوي مخې ته ور ووت او ورته ئي وويل ۱۷
چه که تاسي ما ته په سلام راغلي يئِ چه مددگارِي مِ وکړئ
نو څما زړه به له تاسي سره واحد وِي او كه چرِي تاسي څما
دُښمنان و پرزوئِ نو په دغه چه څما په ورغوي کښ ظلم نشته
نو څمونږ دَ پلرونو الله دِ وکورِي او تنبيه دِ وکړِي ۱۸ نو په عماسائي ۱۸
چه دَ هغو ديرشو سَروه روح لباس ور واغوستاوه وئي ويل چه
مونږ ستا يُو اي داؤدَ او مونږ له تا سره يو اي ابنِ يسّي سلام
سلام په تا او سلام ستا په مددگارو څکه چه ستا الله ستا
مددگار دیَ نو داؤد هغوي قبول كړه او دَ لښكرو سرداران ئي كړه
۱۹ او څني له منسّي نه داؤد ته ولويدل هغه وقت چه له فلسطيانو ۱۹
سره په شاؤل باندِ دَ جنگ دَپاره راغي او دوي دَ هغو مددگارِي
ونه كړه څكه چه سرورانو دَ فلسطيانو په مصلحت سره واختل
وئي ويل چه دوي به څمونږ سرونه خپل خاوند شاؤل ته
پريباسِي ۲۰ چه دیَ څقلغ ته روان شه له منسّي نه ده ته ۲۰
ولويدل عدناح او يوزاباد او يديعئيل او يوزاباد او اليهو او
ځلثاي سرداران دَ زرونو دَ منسّي ۲۱ او دوي په داړي سره دَ ۲۱
داؤد مددگارِي وكړه څكه چه دوي ټول جبّاران دَ قوّت او په
لښكر كښ سرداران وُو ۲۲ څكه چه دوي تله ورځ په ورځ ۲۲
داؤد ته راغلل دَده دَ مددگارئِ دَپاره تر دي چه لوي لښكر
شه لكه لښكر دَ الله

۲۳ او دغه شمار دَ هغو سردارانو دي چه جنگيالِي دَ ۲۳
وتلو دَپاره تيار شوِي په حبرون كښ داؤد ته ورغلل چه دَ
شاؤل بادشاهِي ده ته وگرزوِي دَ خداوند دَ قول په موافق
۲۴ دَ يهودا زامن چه ډالونه او برچي ئي پورته كول شپږ زره او ۲۴
اته سوه جنگيالِي تيار شوِي ۲۵ له بنِي شمعون نه جبّاران دَ قوّت دَ ۲۵

او يديعئيل

۲۶ وتلو دَپاره اوه زره او سل ۲۶ له بني لاوِي څلور زره او شپږ سوه
۲۷ ۲۷ او يهوياداع رئيس دَ هارونيانو او له هغه سره دري زره او
۲۸ اوه سوه ۲۸ او صادوق ځوان جبّار دَ قوّت او دَده دَ پلار دَ کور
۲۹ دوه ويشت سرداران ۲۹ او له بني بنيامين دَ شاؤل ورونړه دري
زره او تردي پوري دَدوي اکثرو ساتنه دَ شاؤل دَ کور و ساتله -
۳۰ ۳۰ او دَ افرائيم له اولاد نه شل زره او اته سوه جبّاران دَ قوّت
۳۱ کسان دَ خپلو پلرونو په کورونو کښ نامدار ۳۱ او له نيمي فرقې دَ
منسّي اته لس زره چه په خپلو نومونو ملقب شول چه دوي راشي
۳۲ او داؤد بادشاه کړي ۳۲ او دَ بني يساکر چه دَ وختونو فهم وپوهيدل
دَپاره دَ پيژاندلو دَ هغه کار چه اسرائيل ئې کوي دَ هغو سرداران
۳۳ دوه سوه او ټول ورونړه دَدوي دَدويو په قول وُو ۳۳ له زبولونه
چه لښکر ته به وتل چه جنګ ته به ئې صفونه ترل په ټولو وسلو
دَ جنګ سره پنځوس زره او ترتيب وار او بيل زړونه نه وُو -
۳۴ ۳۴ او له نفتالي نه زر سرداران او ورسره اوه ديرش زره له
۳۵ ډالونو او له نيزو سره ۳۵ او له دانيانو صفونه تړونکي جنګ ته
۳۶ اته ويشت زره او شپږ سوه ۳۶ او له آشير نه چه لښکر ته
۳۷ ووتل دَ صف ترلو دَپاره جنګ ته څلويښت زره ۳۷ او له پوري
خوا دَ اردن له راؤبينيانو او له جاديانو او له نيمي فرقې دَ منسّي
۳۸ له ټولو وسلو دَ لښکر دَ جنګ سره يو سل شل زره ۳۸ دا
ټول کسان دَ جنګ وُو چه په صفونو سره ترتيب وار وُو په
سالم زړه سره حبرون ته راغلل تاچه داؤد په ټول اسرائيل
بادشاه کړي هم هسې باقي اسرائيل په يوه زړه سره وُو چه
۳۹ داؤد بادشاه کړي ۳۹ او دوي به هلته له داؤد سره دري ورځي
وُو خوړل او څښل به ئې ځکه چه دَدوي ورونړو دوي ته تياري
۴۰ کړي وَه ۴۰ او هم داسي هغوي چه دوي ته ورنزدي تر يساکر او

زبولون او نفتالي پوري په خرو او په اوښانو او په قچرو او په
غوايانو ورته راوړي او خوارهِ دَ اوړو او دَبلي دَ انځير او ترنګوري
دَ مويزانو او شراب او تيل او غوايان او ګډورِي په ډيروالي سره
ځکه چه په اسرائيل کښ ښادِي وه ✣

# دیارلسم باب

۱ او داؤد دَ زرګونو او دَ سلګونو له ټولو سردارانو سره او ۱
له آميرانو سره صلاح وکړه ۲ او داؤد ټول جماعت دَ اسرائيل ۲
ته وويل چه ستاسو په نزد ښه او دغه له خداوند الله ځمونږ
وي نو قاصدان په هر لوري باقي وروڼو خپلو ته چه په ټولو
زمکو دَ اسرائيل کښ دِي او ورسره کوهنانو او لاويانو ته دَ
هغو په ښهرونو او په ځاګاهونو کښ ور واستوو تاچه مونږ ته
راټول شي ۳ نو به مونږ دَ خپل الله صندوق ځان ته را وګرزوو ۳
ځکه چه مونږ دَ شاؤل په ورځو کښ دَ هغه پوښتنه ونه کړه
۴ نو ټول جماعت دَ داسي کولو دَپاره وويل ځکه چه دا خبره دَ ۴
ټول اُمّت په سترګو راسته ده ۵ او داؤد ټول اسرائيل جمع کړه ۵
له شيحوره دَ مصر دَ حمات تر ننه وتني پوري چه صندوق دَ الله
له قريت يعاريم نه راوړِي ۶ او داؤد او ټول اسرائيل بعلي ته دَ ۶
قريت يعاريم وختل هغه چه دَ يهودا وه تاچه له هغه ځاي نه
صندوق دَ خداوند الله چه په کروبيانو ناست دي هغه چه په نوم
دَده دُعا کيږِي ۷ او دَ الله صندوق ئې په نوي ګاډِي سور کړ دَ ۷
ابيناداب له کوره او عزّا او اخيو ګاډِي چلاوه ۸ او داؤد او ټول ۸
اسرائيل لوبي کونکي ګډونکي دَ الله دَ وړاندِ په ټول زور سره او
په سندرو او په ستارونو او په ربابونو او په تنبلونو او په ځنګونو
او په توريو سره ۹ او چه دَ کيدون درمند ته ورسيدل نو عزّا ۹

خپل لاس اوږد کړ چه صندوق و نیسي ولي چه غوایانو لتي
١٠ وهلي ١٠ نو دَ خداوند غضب په عزا کرم شه او وئي واهه په دا
چه ده لاس هغه صندوق ته اوږد کړ او هلته دَ الله دَ وړاندِ
١١ مړ شه ١١ نو داؤد خپه شه څکه چه خداوند په پرځولو سره عزا
پرځاوه او ده دَ هغه ځاي نوم پرځ عزا کيښود تر دي ورځي پوري
١٢ ١٢ او داؤد په دغي ورځي له الله ووېرېده وئي ويل چه صندوق
١٣ دَ الله به څرنګ خپل ځان ته بوزم ١٣ او داؤد هغه صندوق خپل
ځان ته دِ داؤد ښهر ته راونه کړزاوه بلکه دَ عوبيدادوم هغه
١۴ جتي وکور ته ئي بوووړ ١۴ او صندوق دَ الله دَ عوبيدادوم په کور سره
دَده په کور کښ دري مياشتي پاتي شه او خداوند دَ عوبيدادوم
کور هــر څه چه دَده وُو مبارک کړل ٭

# څوارلسم باب

١ ١ او حيرام بادشاه دَ صور داؤد ته قاصدان واستول او دَ
٢ لمنځي لرګي او معماران او نجاران چه کور ورته بنا کړي ٢ او
داؤد پوه شه چه خداوند به دي په اسرائيل باندِ بادشاه
ټينګ کړي څکه چه بادشاهي دَده پاس په پورته شوه دَپاره
٣ دَده دَ اُمت اسرائيل ٣ او داؤد په اورشليم کښ بيا ښځي واخستلي
او داؤد نور زامن او لونړه وزوول او دا دَده دَ اولاد نومونه
دي چه په اورشليم کښ ورته وشول شموع او شوباب ناثان
۴ ۵ او سليمان ۵ او يبحار او اليشوع او الفالط ٦ او نوجه او نفج او
٦ ٧ ٨ يافيع ٧ او ليشاماع او بعلياداع او اليفلط ٨ او فلسطيانو داوريدل
چه داؤد په ټول اسرائيل بادشاه مسح کړي شه نو ټول فلسطيان
وختل چه دَ داؤد تلاش وکړي او چه داؤد واوريدل نو دَ دوي
٩ مخي ته ورغي ٩ او فلسطيان راغلي وُو او دَ رفائيم په خوړ کښ

خواره شول ۱۰ نو داؤد له الله نه سوال وکړ ویل ئي چه زه په ۱۰
فلسطیانو باندِ وختږم او ته به دوي څما په لاس راکړي څه ؟
نو خداوند ورته ووِ چه وخیژه زه به هغوي ستا په لاس کښ
درکړم ۱۱ او دوي بعل پراځیم ته وختل او داؤد دوي هلته ووهل ۱۱
او داؤد وویل چه الله څما دښمنان څما په لاس ویرڅول لکه
پرڅول دَ اوبو په دي ئي دَ هغه ځاي نوم بعل پراځیم وباله ۱۲ او ۱۲
هلته ئي خپل خدایان پریښودل او داؤد امر وکړ او هغه ئي په
اور وسوزول ۱۳ او بیا هم فلسطیانو زیادت وکړ او په خوړ کښ ۱۳
خواره شول ۱۴ او داؤد بیا الله ته سوال وکړ او الله ورته وویل ۱۴
مه خیژه ورته را وګرزه او په دوي باندِ دَ توت دَ ونو له برابرِ
پرِ راشه ۱۵ او داسي به وشي هرکله چه ته دَ توت دَ ونو په ۱۵
سرونو دَ قدمونو آواز واوري نو هغه وقت په جنګ ووزه ځکه چه
هغه الله ستا په مخ وتلي دي چه دَ فلسطیانو لښکر ووهي ۱۶ نو ۱۶
داؤد داسي وکړل لکه چه الله وفرمایل او دَ فلسطیانو لښکر
ئي له جبعونه تر جازره پوري وواهه او دَ داؤد نوم ټولي زمکي
ته ووت او خداوند دَده هیبت په ټولو خلقو واچاوه ؞

# پنځلسم باب

۱ او ده دَ ځان دَپاره دَ داؤد په ښهر کښ کورونه جوړ کړل ۱
او دَ الله دَ صندوق دَپاره ئي مکان تیار کړ او هغه ته ئي خیمه
ودروله ۲ نو داؤد وویل دَ پورته کولو دَپاره دَ صندوق دَ الله ۲
نشته مګر لاویان ځکه چه خداوند دوي دَ صندوق دَ پورته
کولو او دَ هغه دَ خدمت کولو دَپاره غوره کړل تر ابده پوري
۳ او داؤد ټول اسرائیل اورشلیم ته جمع کړه چه دَ خداوند ۳
صندوق و هغه مکان ته چه ورته ئي تیار کړي دي راوړي

۴ ۵ ۴ نو داؤد بني هارون او لاويان راټول کړل ۵ له بني قهات
۶ اوريئيل سردار او دَده ورونړه يو سل او شل ۶ له بني مراري
۷ نه عسايا سردار او دَده ورونړه دوه سوه شل ۷ له بني جرشوم
۸ يوئيل هغه سردار او دَده ورونړه يو سل ديرش ۸ له بني اليځاپان
۹ نه شمياه سردار او دَده ورونړه دوه سوه ۹ له بني حبرون —
۱۰ ايليئيل سردار او دَده ورونړه اتيا ۱۰ له بني عزئيل نه عميناداب -
۱۱ سردار او دَده ورونړه يو سل دولس ۱۱ او داؤد صادوق او ابياثار
له هغه کوهينانو وبلل او له لاويانو اوريئيل او عسايا او يوئيل
۱۲ او شمعياه او ايليئيل او عميناداب ۱۲ او ده ورته وويل چه تاسي
دَ لاويانو دَ پلارونو سرونه يئ نو تاسي دَ ځانونه مقديس وکړئ
خپل او دَ خپلو ورونړو چه دَ خداوند الله دَ اسرائيل صندوق
۱۳ وخيژوئ هغه ځاي ته چه ما ورته تيار کړي دئ ۱۳ ځکه چه تاسي
په اوّل وارنه وئ چه خداوند الله ځمونږ مونږه پرځولي يو ځکه چه
۱۴ په موافق دَ دستور مو ورنه سوال ونه کړه ۱۴ نو کوهينانو او لاويانو
ځانونه مقدّس کړل چه دَ خداوند الله دَ اسرائيل صندوق وخيژوي
۱۵ ۱۵ او بني لاويانو صندوق دَ الله واخست لکه چه موسیٰ وفرمايل
۱۶ موافق دَ کلام دَ خداوند په لرګو سره په خپلو اوږو باند ۱۶ او داؤد
دَ هغو لاويانو وسردارانو ته وفرمايل چه خپل ورونړه سرودګران
دَ سرود په کاليو مقرّر کړئ په ربابونو او په ستارونو او په
۱۷ ژنګولو غږونکي او دَ خوښئ دَ آواز پورته کونکي ۱۷ نو هغو لاويانو
هيمان بن يوئيل او دَده له ورونړو آساف بن برکياهو او له بني مراري
۱۸ نه دَ دوي ورونړه ايثان بن قوشاياهو مقرّر کړل ۱۸ او له دوي سره
دَ دوي ورونړه دَ دويمي زکرياهو او بين او يعزئيل او شميراموت
او يحيئيل او عني او الياب او بناياهو او معسياهو او متثياهو
او اليفليهو او مقنياهو او عوبيدادوم او يعيئيل چه دربانان وو

۱۹ او هغه سرودگر هیمان او آساف او ایتان دَ زیړو په ۱۹
ژنگونو دَ اوروِلو دَپاره ۲۰ او ذکریاه او عزئیل او شمیراموت ۲۰
او یحئیل او عُنِّي او الیاب او معسیاهو او بنایاهو په
زیړو تارونو دَ پیغلو په ربابونو باندِ ۲۱ او متتیاهو او الیفلیاهو ۲۱
او مقناهو او عوبیدادوم او یعئیل او عزریاهو په ستارونو
په اتمِ بمَ باندِ چه روان ئې کړي ۲۲ او کننیاهو سردار دَ ۲۲
لاویانو په راگ هغه تال کول په راگ ولي چه هغه فهمدار
وه ۲۳ او برکیاه او القانه دروانان دَ صندوق دَپاره ۲۴ او ۲۳ ۲۴
شبنیاهو او یوشافاط او نتنئیل او عماساي او زکریاهو او
بنایاهو او الیعزر هغه کوهینان چه په توریو کښې به
ئې پوکل دَ الله دَ صندوق دَ وړاندِ او عوبیدادوم او
یحیاه دروانان دَ صندوق وُو ۲۵ او داؤد او سپین ږیري ۲۵
دَ اسرائیل او سرداران دَ زرگونو هغوي چه لاړل چه دَ
خداوند دَ عهد صندوق دَ عوبیدادوم له کور نه په خوښيِ سره
راوخیژوِي ۲۶ او چه الله هغه لاویانو ته مدد ورکړ چه دَ ۲۶
خداوند دَ عهد صندوق ئې وړ نو دوي اوه سخوندران او
اوه مړونه ذبحه کړل ۲۷ او داؤد په کتانيِ قبا کمربسته وه او ۲۷
هغو ټولو لاویانو چه صندوق ئې وړ او سرودگرانو او کننیاه
سردار دَ راگ له سرودگرو سره او په داؤد باندِ دَ کتان
افود وه ۲۸ او ټول اسرائیل دَ خداوند دَ عهد صندوق ۲۸
وخیژاوه په هواوَ سره او په قرناؤ سره او په توریو او په ژنگولو سره
زور کونکي په ربابونو او په ستارونو سره ۲۹ او چه دَ خداوند دَ عهد ۲۹
صندوق دَ داؤد ښهر ته ننه وت نو میکال لور دَ شاؤل له
دریځي نه وکتل او داؤد بادشاه ئې ولید چه گډیده او لوبي
ئې کولي او دي په خپل زړه کښې سپک وگانړه ٭

# شپاړسم باب

١ ١ او دوي دَ خداوند صندوق ننويست او دَ هغي خيمي په مينځ
چه داؤد دَ هغه دپاره ودرولې وه کيښود او سيزونکي او دَ
٢ سلامتيٍ ذبيحي ئي دَ الله دَ وړاندِ تيري کړي ٢ او چه داؤد له
خيژولو دَ سيزونکو او دَ سلامتيٍ له ذبيحو خيژولو وزګار شه
٣ نو اُمّت له ئي دَ يهوه په نامه برکت ورکړ ٣ او هر سړي ته دَ
اسرائيل هم ښځو ته هم سړو ته ئي يو ګکوړي دَ ډوډِئ او يوه
حصه او تکلئ دَ مويزو وويشل
٤ ٤ او دَ خداوند دَ صندوق دَ وړاندِ له لاويانو نه
خادمان ولګول او دَ ذکر کولو او دَ شکر او دَ خداوند الله دَ
اسرائيل دپاره ثنا
٥ ٥ اساف هغه سر او ذکرياه دويم او يعئيل او شميراموث
او يحيئيل او متيثيا او الياب او بناياهو او عوبيدادوم او يعئيل
په کاليو دَ ربابونو او دَ ستارونو او اساف به په ژنګولو زوږ
٦ کاوه ٦ او بناياهو او يحزيئيل هغه کوهينان په توريو مدام دَ
٧ الله دَ عهد دَ صندوق دَ وړاندِ ٧ هغه وقت په دغي ورځي
وړمبي داؤد دَ خداوند حمد دَ اساف او دده دَ ورونړو په
لاس وکړ

| | |
|---|---|
| ٨ دَ خداوند حمد کويِ دَده دَ نوُم ذکر کويِ | خبري کويِ |
| دَده کارونه په خلقو کښ بيان کويِ | ١٠ دَده دَ قدّوس نوُم حمد وکړيِ |
| ٩ ده ته سرود کويِ ده ته سندري وايِئ | دَ يهوه دَ طالبانو زړه دِ خوشحالي وکړي |
| دَده دَ عجائبو په خپلو خبرونو | ١١ دَ يهوه او دَده دَ قدرت طلب وکړيِ |

مُدام دَده مخ ولټوئ
۱۲ هغه عجائبات دَده چه وئ کړل
ذکر کوئ
دَده نبيي او دَده دَخولي حکمونه
۱۳ اي اولاد دَ اسرائيل بنده دَده
او اي غوره کړيو دَده بني يعقوبه
۱۴ هغه خداوند الله څموږ دي
په ټولي زمکي کښ دَده حکمونه
۱۵ ترابده پوري دَده وعدي يادي کړئ
کلمه چه حکم ئي پر وکړ تر زرو
پيړو پوري
۱۶ هغه چه ده له ابراهيم سره وکړه
او له اصحاق سره ئي قسم وکړ
۱۷ او هغه ئي يعقوب ته دَ حق
دَپاره ودروله
او اسرائيل ته ابدي وعده
۱۸ و ئي ويل چه زه به تا ته دَ
کنعان زمکه
ستاسو موروثي حصه درکړم
۱۹ ستاسي دَ کيدلو سړي دَ شمار
هو ډير لږ او په هغه کښ
مسافر وئ
۲۰ او له يوه قومه بل قوم ته
او له يوه بادشاهت نورو خلقو ته
۲۱ ده يو پري نه ښود چه په دوي
ظلم وکړي
بلکه دَدوي دَپاره ئي بادشاهان
ملامت کړل
۲۲ چه تاسي څما په مسحه کړيو
لاس مه لګوئ
او څما نبيانو ته آزار مه رسوئ
۲۳ اي ټولي زمکي خداوند ته سرود
وکړئ
دَده په خلاصي ورځ په ورځ زيري
کوئ
۲۴ په قومونو کښ دَده تمجيد او
په ټولو خلقو کښ دَده عجائبات
بيان کړئ
۲۵ څکه چه خداوند لوي دَي او
نهايت دَ ثنا لايق دي
او دَي په ټولو خدايانو دهشتناک
دَي
۲۶ څکه چه ټول خدايان دَ قومونو
ناکسان دي
مګر خداوند آسمانونه جوړ کړل
۲۷ عظمت او حشمت دَده دَ وړاندي
دي
قوّت او ښادماني دَده په مکان
کښ دي
۲۸ اي دَ خلقو خيلخانو خداوند ته

وګنړئ
وګنړئ خداوند ته مجد او قوّت
۲۹ دَ خداوند دَ نوم مجد وګنړئ
هديې واخلئ او دَده دَ وړاندِ
راشئ
خداوند ته په زينت په مقدس
کښ سجده وکړئ
۳۰ اې ټولې زمکې دَده دَ وړاندِ
ولړزيږئ
آبادي دِ هم ټينګه شي او دِ
نه خوځيږي
۳۱ آسمانونه دِ خوښي وکړي او
زمکه دِ ښادي وکړي
او په قومونو کښ دوي دِ وائي
چه خداوند بادشاهي کوي

۳۲ درياب او دَ هغه ډکوالي دِ غړنبا وکړي
او ورشو او هر هغه څه چه په
هغه کښ دي ښادي دِ وکړي
۳۳ هغه وقت به دَ ځنګل ونې دَ خداوند
دَ وړاندِ ترنّم وکړي
ځکه چه هغه راغي چه دَ زمکې
عدالت وکړي
۳۴ دَ خداوند حمد وکړئ ځکه چه
خداوند نيک دَي
ولې چه رحمت دَده ترابدَ پورې دَي
۳۵ او ووايئ چه خلاص موکړه اې الله
دَ خلاصون ځمونږ
او جمع موکړه او له قومونو موراوکاږه
چه مونږ ستا دَ قدّوس نوم حمد وکړو
او ستا په ثنا فخر وکړو

۳۶ دَ اسرائيل **يهوه الله** له ازله ترابدَ پورې مبارک دي نو ټول
اُمّت ووئيل آمين او دَ خداوند ثنا ئي وکړه
۳۷ ۳۷ او هلته ئي دَ خداوند دَ عهد دَ صندوق دَ وړاندِ
آساف او دَده ورونړه پريښول چه دَ صندوق دَ وړاندِ مدام
۳۸ خدمت وکړي لکه ورځې په ورځې ترتيب کيده ۳۸ او عوبيدادوم
او دَده ورونړه اته شپيته او عوبيدادوم بن يديثون او حوصه
۳۹ دروانان دَپاره ۳۹ او صادوق کوهين او دَده ورونړه هغه کوهينان
چه دَ خداوند دَ مسکن دَ وړاندِ وُو په هغه لوړي چه په
۴۰ جبعون کښ وه ۴۰ چه سيځونکې قرباني خداوند ته وخيژوي دَ
سيځلو په مذبح مدام صباح او ماښام او موافق دَ هر هغه

څه چه دَ خداوند په توریت کښې لیکلي شوي دي چه ده
په اسرائیل باندِ وفرمایل
۴۱ ۴۱ او له دوي سره هیمان او یدوثون او نور هغه
چونړ کړي چه په نومونو ملقب شول چه دَ خداوند حمد وکړي
۴۲ ځکه چه دَ ده مهرباني ترابده پوري دَه ۴۲ او له دوي سره
هیمان او یدوثون له توریو او له ژنګولو سره دَ زوبن کولو
دَپاره اوکالي دَ سرود دَ الله او زامن دَ یدوثون دروانان
۴۳ وُو ۴۳ بیا ټول خلق هر سړي خپل کورته لاړ او داؤد
وګرزیده چه خپل کورته برکت ورکړي *

# اوه لسم باب

۱ ۱ او داسي وشوه چه داؤد په خپل کور کښې واوسیده نو
داؤد ناثان نبي ته وویل ګوره زه دَ لمنځي دَ لرګو په کور
کښې اوسم او صندوق دَ عهد دَ خداوند تر پردو دَ لاندي
۲ دَي ۲ نو ناثان داؤد ته وُوِچه هرڅه چه دِ په زړه کښې دِي
۳ وئي کړه ځکه چه الله درسره دَي ۳ او په دغي شپي کښې کلام
۴ دَ الله ناثان ته راغي ویل ئي ۴ لاړ شه او داؤد بنده څما ته
ووایه چه خداوند داسي وائي چه ته به ما ته کور بنا نه کړي
۵ چه قرار کښینم ۵ ځکه زه خو له هغي ورځي نه چه اسرائیل مِ
را وخیژاوه تر دي ورځي پوري په کور کښې قرار نه کښینم بلکه له
۶ یوي خیمي بلي خیمي ته او له مسکن تر مسکن لاړ شوم ۶ په هر
ځاي کښې چه زه له ټول اسرائیل سره ګرزیدم نو په یو کلام
سره مِ له یوه له قاضیانو دَ اسرائیل سره چه هغو ته مِ
وفرمایل چه څما خلق اسرائیل وڅروي چا ته مِ کلام وکړه دي
۷ ویلو چه تاسو څما دَپارَ ولي دَ لمنځي کور بنا نه کړئ ؟ ۷ او اوس

ته څما بنده داؤد ته داسي ووايه چه خداوند دَ لښکرو داسي
وائي چه ته مِ له شپاله راونيوي دَ رمي له وروستو نه چه
٨ ته څما په اُمّت اسرائيل امير شي ٨ او چرته چه دِ مخ کړ زه
درسره وم او ستا ټول دُښمنان مِ ستا له وړاندِ پرېکړل او
تا لره مِ نُوم لکه نُوم دَ هغو غټانو جوړ کړ چه په زمکي کښ
٩ دِي ٩ او زه به خپل اُمّت اسرائيل ته مکان مقرّر کړم او
زه به ئي ولګاوم چه دوي په خپل ځاي کښ واوسي او بيا به
خوځيدلي نه شِي او بيا به ئي دَ بدئ زامن ونه آزاروِي لکه
١٠ په اوّل کښ ١٠ او له هغو ورځو نه چه ما په خپل اُمّت اسرائيل
باندِ قاضيان فرمايل او ټول دُښمنان ستا مِ ذليل کړي
دِي او درڅرګندوم چه خداوند به ستا دَپاره کور بِنا کړي
١١ ١١ او داسي به وِي هرکله چه ستا ورځي پوره شِي چه ته له
خپلو پلرونو سره لاړ شي نو زه به پس له تا نه ستا له اولاده چه
ستا له زامنو وِي ودروم او بادشاهي دَ هغه به ثابته کړم
١٢ ١٢ هغه به څما دَپاره کور بِنا کړي او زه به دَ هغه تخت ثابت
١٣ کړم ١٣ او زه به ورته دَ پلار دَپاره يم او هغه به ماته دَ زوي
دَپاره وِي او زه به خپله مهرباني ورنه بنده نه کړم لکه چه
١٤ ما له هغه نه بنده کړه چه له تا نه وړاندِ وه ١٤ او زه به ئي
په خپل کور او په خپلي بادشاهئ کښ ودروم ترابده پوري
١٥ او دَ هغه تخت به تر ابده پوري ثابت وِي ١٥ نو دَ دغه ټول
کلام په موافق او دَدي ټولي رويا په موافق هسي ناثان داؤد
ته کلام وکړ
١٦ ١٦ نو داؤد بادشاه ننه وت او دَ خداوند دَ وړاندي
کښيناست او و ئي ويل چه اي خداونده الله زه څوک يم او
١٧ څما دَ پلار کور څوک دي چه تا تر دي پوري بيولي يم ١٧ او ستا

به ستړکو کښې دا کمه ده او تا دَ خپل بنده دَ کور په باب خبره
وکړه تر لرې زماني پورې او ما ته دِ نظر وکړ لکه پورته نه لکه
۱۸ عادت دَ انسان اې خداونده الله ۱۸ نو داؤد بیا تا لره څه
زیات کړي ستا دَ بنده دَ عزّت دَپاره او ته خپل بنده پیژنې
۱۹ ۱۹ اې خداونده ستا دَ بنده په سبب او تا دَ خپل زړه په
موافق دا ټول لوي کارونه کړي دِي چه ټول لوي کارونه دِ ظاهر
۲۰ کړي دِي ۲۰ اې خداونده ستا په شان نشته او بې له تا نه
الله نشته موافق دَ هر څه چه مو په غوږونو خپلو اوریدلي
۲۱ دِي ۲۱ او په زمکه کښې کوم یو قوم دیَ ستا دَ اسرائیل دَ
اُمّت په شان هغه چه هغه الله ورغي چه دَ خپل ځان دَپاره
يُ اُمّت دَ فديي کړي چه تا لره لوي او هولناک نُوم کيږدي
چه ستا دَ اُمّت له مخ نه چه تا له مصر نه په فدیه واخست
۲۲ قومونه و شړي ۲۲ او تا خپل اُمّت اسرائیل دَ خپل ځان دَپاره
تر ابده پورې دَ اُمّت دَپاره کیښود او ته اې خداونده دَدوي
۲۳ دَپاره دَ الله دَپاره شوې ۲۳ او اوس اې خداونده تر ابده
پورې هغه کلام آمین کړه چه تا دَ خپل بنده په باب او دَده دَ
کور په باب کلام وکړ او لکه چه تا کلام کړي دیَ هسې وکړه
۲۴ ۲۴ او خپل نُوم تر ابده پورې **آمین** او لوي کړه په دې ویلو
**یهوه دَ لښکرو الله دَ اسرائیل** دیَ هو الله
دَ اسرائیل دَپاره او ستا دَ بنده داؤد کور دِ ستا دَ وړاندِ
۲۵ ثابت ښِي ۲۵ ځکه چه تا اې الله دَ خپل بنده وغوږ ته ښکاره
کړي دِي چه ته به ده لره کور بنا کړي دَدې دَپاره ستا بنده
۲۶ وموندە چه ستا دَ وړاندِ دُعا کړي ۲۶ او اوس اې خداونده
ته هغه الله يې او تا په دې نیکۍ خپل بنده ته وعده وکړه –
۲۷ او اوس ته خوښه کړه چه دَ خپل بنده کور ته برکت ورکړي چه

تر ابده پوري ستا دَ وړاندي. وِي ځکه چه تا اي خداوندَ په
برکت کړي دي او هغه دِ تر ابدَ مبارک وِي ؛

# اتلسم باب

۱ آ او پس له دغه داؤد فلسطيان ووهل او ذليل ئي کړل او
۲ جَتّ او دَ هغه کلي ئي دَ فلسطيانو له لاسَ واخستل ۲ او
مواب ئي ووهه او موابيان دَ داؤد مريونه شول هديي به ئي
۳ وړي ۳ او داؤد هدرعزر بادشاه دَ صوبه دَ حمات په خواه
وواهه دَده په تللو کښ تاچه خپله بادشاهي په نهر فرات
۴ قائمه کړي ۴ او داؤد له هغو نه يو زر کاډي واخستل او
اوه زره سواره او شل زره پلي سړي او داؤد ټول آسونه
۵ دَ کاډيو پي کړل او هغوي نه ئي سل کاډي پرينښودل ۵ او اراميِ
دَ دمشق چه هدرعزر بادشاه دَ صوبه ته مدد ورکړي نو
۶ داؤد له ارام نه دوه ويشت زره سړي ووهل ۶ او داؤد په
ارام دَ دمشق کښ منصب داران مقرّر کړل او اراميان دَ داؤد
مريونه شول هديي به ئي وروړي او خداوند به داؤد خلاص
۷ کاوه هر چرته چه به ته ۷ او داؤد دَ سرو زرو ډالونه چه دَ
۸ هدرعزر په مريونو وُو واخستل اورشليم ته ئي راوړل ۸ او له
طبحت او له چون ښهرونو دَ هدرعزر داؤد بيحدَ ډير زيړ
واخستل چه سليمان ورنه دَ زيړو بحر او ستني او دَ زيړو کالي
۹ جوړ کړل ۹ او توعو بادشاه دَ حمات واوريدل چه داؤد ټول
۱۰ لښکر دَ هدرعزر بادشاه دَ صوبه وواهه ۱۰ نو هدورام زوي
خپل داؤد هغه بادشاه ته واستاوه چه دَده دَ سلامتيُ پوښتنه
وکړي او مبارکي ورکړي ځکه چه ده له هدرعزر سره جنګ وکړ
او وئي واهه ځکه چه دَ هدرعزر له توعو سره سړي دَ جنګونو

وه) او ورسره ټول کالي دَ سرو زرو او دَ سپینو او دَ زیړو وُو
۱۱ اا دا هم بادشاه داؤد خداوند ته مقدّس کړه سره له هغو
سپینو او سرو زرو چه له ټولو قومونو ئي واخستل له آدوم
نه او له موآب نه او له بني‌عمونه او له فلسطیانو او له
۱۲ عمالیق نه ۱۲ او ابیشاي زوي دَ ځرویاه دَ مالګي په میدان کښ
۱۳ له بني‌عمونه اتلس زره ووهل ۱۳ او په آدوم کښ ئي منصبداران
مقرّر کړل نو ټول ادومیان دَ داؤد مریونه شول او خداوند
۱۴ به داؤد خلاص کاوه هرچرته چه به تَه ۱۴ او داؤد په ټول اسرائیل
بادشاهي کوله او دَ ټول قوم خپل دَپاره عدالت صداقت کونکي
۱۵ شه ۱۵ او یوآب زوي دَ ځرویه په لښکروه او یهوشافاط بن
اخیلود واقعه‌نویس او صدوق بن اخیطوب او ابي‌مالک بن
ابیاتار کوهینان وُو او شوشا کاتب او بنایاهو بن یهوداع په
کراتانو او په پیادو وه او دَ داؤد ورنبي زامن دَ بادشاه په
لاسو کښ ❊

# نولسم باب

۱ آ او پس له دي داسي وشوه چه ناحاش بادشاه دَ عمون مړ شه
۲ او په بدل کښ ئي زوي دَده بادشاه شه ۲ نو داؤد وویل چه
له حانون بن ناحاش سره به ښیګړه وکړم ځکه چه دَده پلار له
ما سره ښیګړه وکړه نو داؤد قاصدان ور واستول چه دَده دَ پلار
تسلّي ورکړئ نو دَ داؤد مریونه دَ بني‌عمون زمکي ته ورغلل-
۳ حانون ته چه تسلّي ورکړي ۳ نو دَ بني‌عمون سردارانو حانون
ته وویل چه ګنړه ستا په سترګو کښ داؤد ستا دَ پلار عزّت
کوي څه؟ چه قاصدان ئي درواستول چه تسلّي درکړي دا په عبور
دَ لټولو او دَ اړولو او دَ زمکي دَ جاسوسئ دَپاره دَ بادشاه مریونه
۴ درته راغلي نه دي څه؟ ۴ نو حانون دَ داؤد مریونه واخستل او

بډيري ئې وخرېلې او جامې ئې له مېنځ نه تر کوناټو پورې پرېکړې
۵ او روان ئې کړل ۵ نو سړي لاړل او داؤد ئې په هغو کسانو خبر
کړ نو ده دَ هغو دَ استقبال دَپاره واستول ځکه چه هغه کسان
بې‌حده رسوا شول او بادشاه ووېل چه تاسې په اريحا کښ کرزئ
۶ څو چه ږيرې مو وټوکيږي بيا را وجاروزئ ۶ او چه بني‌عمون وليدل
چه دوي خپل ځانونه داؤد ته ګنده کړي وُو نو حانون او بني‌عمون
يو زر قنطاره دَ سپينو زرو واستول چه له ارام نهرين او له
۷ ارام‌معکه نه او له ځوبه نه ګاډي او سواره کرايه کړي ۷ نو دوي
دَ خپلو ځانونو دَپاره دوديرش زره ګاډي دَ خپلو ځانونو دَپاره کرايه
کړل او دَ معکه بادشاه او دَ ده خلق او هغوي ورغله او دَ ميدان
په برابر ډېره شول او بني‌عمون له خپلو ښهرونو راټول شول
۸ او جنګ ته راغلل ۸ او چه داؤد واورېدل نو يوآب او ټول
۹ لښکر دَ هغو جبّارانو ئې ورواستوه ۹ نو بني‌عمون ووتل او
جنګ ته ئې صفونه وتړل دَ ښهر دروازې ته او هغه بادشاهان
۱۰ چه ورغلي وُو کوښې په ميدان کښ وُو ۱۰ او چه يوآب وليدل
چه مخ دَ جنګ دَده په لوړې وه له وړاندې او له وروستو نو
له ټولو چونړ کړو دَ اسرائيل نه ئې غوره کړل او دَ ارام مخې
۱۱ ته ئې صف کړل ۱۱ او باقي اُمّت ئې دَده دَ ورور ابيشاي په لاس
۱۲ وسپارل او دَ بني‌عمون دَپاره ئې صفونه وتړل ۱۲ او وئې وېل چه
که ارام په ما باندې غالب شي نو ته به ما لره خلاصون يې او که
۱۳ بني‌عمون په تا باندې غالب شي زه به دې خلاص کړم ۱۳ ټينګ شه
او مونږ ټکړه دې اوسو خپونږ دَ اُمّت دَپاره او خپونږ دَ الله دَ
ښهرونو دَپاره او چه دَ خداوند په سترګو کښ ښه وي ودې کړي
۱۴ ۱۴ او يوآب او هغه خلق چه ورسره وُو دَ ارام ومخې ته
نژدې شول دَ جنګ دَپاره او هغوي دَدوي له مخې نه وتښتېدل

۱۵ او چه بنيعمون وليدل چه ارام وتښتيده نو دوي هم دَده دَ ۱۵
ورور ابيشاي له مخ نه وتښتيدل او ښهر ته ننوتل او يواب
اورشليم ته لاړ شه ۱۶ او چه ارام وليد چه دوي دَ اسرائيل له ۱۶
مخ نه شکست شول نو قاصدان ئي واستول او هغه اراميان چه
دَ نهر په پوري خوا وُو رائي وستل او دَدوي دَ وړاندِ شوفک سردار
دَ لښکر دَ هدرعزر او داؤد ته څرګند کړي شه نو ټول اسرائيل
ئي راټول کړل او له اردن نه پوري شه او دوي ته ورغي او دَ
هغو په خلاف ئي صف وتاړه ۱۷ او چه داؤد دَ ارام مخ ته صف په ۱۷
جنګ کښ وتاړه نو ورسره وجنګيده ۱۸ او ارام دَ اسرائيل له مخ ۱۸
نه وتښتيدل او داؤد له ارام نه اوه زره دَ ګاډو سواره او څلويښت
زره پلي سړي ووژلل او دَ لښکر سردار شوفک ئي مړ کړ ۱۹ او چه ۱۹
دَ هدرعزر مريونو وليدل چه دوي دَ اسرائيل دَ وړاندِ شکست
شول نو له داؤد سره ئي صلح وکړه او دَده خدمت ئي کاوه او
ارام ونه غوښت چه بيا بنيعمون خلاص کړي ❊

# شلم باب

۱ او دَ کال په تماميدلو داسي وشول دَ بادشاهانو دَ ختلو په وقت ۱
يواب قوّت دَ لښکر بوت او دَ بنيعمون زمکه ئي خرابه کړه او راغي
او ربّه ئي ګيره کړه او داؤد په اورشلم کښ مقيم وه او يواب
ربّه ووهله او و ئي نړوله ۲ او داؤد دَدوي دَ بادشاه تاج دَ هغه ۲
دَ سر له پاسه واخست او دَ هغه وزن دَ سرو زرو نه ئي يو
قنطار و موند او په هغه کښ يو ګران بها کاڼي وه او دَ داؤد په
سر باندِ به وه او دَ ښهر لوټ ئي ويوست او بيحده ډير وه
۳ او هغه خلق چه په کښ وُو و ئي باسل او تر ارو او دَ اوسپني ۳
تر ښاخونو او تر تبرونو لاندِ ئي په ترتيب کړل او داؤد داسي له ټولو

ښهرونو دَ بنيعمون سره وکړل بيا داؤد او ټول اُمّت اورشلم ته
۴ وجار وتلل ۞ پس له دغه داسي وشول چه په جزر جنګ له
فلسطيانو سره پورته شه هغه وقت سبکاي حوشاتي سفي له
۵ اولاده دَ رافاء وواهه او دوي ذليل کړي شول ۞ او بيا هم له
فلسطيانو سره جنګ وه نو الحانان بن ياعور لحمي ورور دَ جلياث
۶ هغه جتي وواهه او دَ هغه دَ نيزي تير لکه لټ دَ جولا وه ۞ بيا
هم په جت جنګ وه او يو لوړ قده سړي وه او ګوتي يې شپږ او
۷ شپږ ځلورويشت وي او هغه هم رافا ته زيږيدلي وه ۞ او چه دَ
اسرائيل پيغور يې وکړ نو يهوناتان بن شمعا ورور دَ داؤد
۸ وواهه ۞ دغه په جت رافا لره پيدا شوي وُو او دَ داؤد او
دَده دَ مريونو په لاس پريوتل ❊

# يو ويشتم باب

۱ ۞ او شيطان په ضد دَ اسرائيل ودريده او داؤد يې ولمساوه
۲ چه اسرائيل وشماري ۞ نو داؤد يواب ته او سردارانو دَ اُمّت
ته وويل چه لاړ شئ بنياسرائيل وشميرئ له بيرسبع نه تر
۳ دان پوري او ما ته يې راوړئ چه زه يې په شمار پوه شم ۞ نو
يواب وويل چه خداوند دِ خپل اُمّت هرڅو چه دي سل ګونه زيات
کړي ليکن اي خاونده خما بادشاه ټول واړه مريونه خما دَ خاوند
نه دي څه ؟ دا ولي خما خاوند لټوي څله دِ اسرائيل دَ ګرموالي
۴ سبب وي ۞ نو دَ بادشاه خبره په يواب غالبه شوه نو يواب ووت
۵ او په ټول اسرائيل وګرزيده بيا اورشلم ته راغي ۞ نو يواب ټول
شمار دَ اُمّت بازخواست داؤد ته ورکړ نو ټول اسرائيل زر زره
او سل زره وُو توريالي سړي او يهوداه څلور سوه اويا زره
۶ توريالي سړي ۞ او لاوي او بنيامين يې دَ هغو په مينځ کښ بازخواست

و نه کړل څکه چه دَ بادشاه خبره دَ یوآب په نزد مکروه وه
۷ او دا کار دَ الله په سترګو کښې بد شه او اسرائیل ئې ووهه ۷
۸ او داؤد الله ته وویل چه ما بیحده خطا وکړه چه دا کار مې ۸
وکړ او اوس دَ خپل بنده ګناه لرې کړه څکه چه ما بیحده احمقي
وکړه ۹ نو خداوند جاد ته خبره وکړه چه رویا لیدونکي دَ داؤد ۹
وه او و ئې ویل ۱۰ لاړ شه او داؤد ته خبره وکړه وو ایه چه ۱۰
خداوند داسې وائي چه زه درې بلا په تا باندې ږدم ته یوه ورنه
دَ خپل ځان دَ پاره غوره کړه نو زه به هغه له تا سره وکړم
۱۱ نو جاد داؤد ته ورغی ورته ئې وویل چه خداوند داسې ۱۱
وائي چه دَ خپل ځان دَ پاره قبوله کړه ۱۲ یا درې کاله لوږه یا چه درې ۱۲
میاشتې برباد شې ستا دَ تنګوونکو دَ وړاندې او یا ستا دَ دښمنانو
توره په تا راشي او یا به درې ورځې دَ خداوند توره وي او
په زمکه به وبا او دَ خداوند فرښته به دَ اسرائیل په ټولو
حدونو کښې فنا کول کوي نو اوس ګوره زه به خپل استونکي
ته څه ځواب ورکوم؟ ۱۳ نو داؤد جاد ته وویل چه تنګ یم ۱۳
ډیر دَ خداوند په لاس کښې دې پریوزم څکه چه دَده رحمتونه
بیحده ډیر دي او زه دې دَ انسان په لاس پرې نه وزم ۱۴ نو ۱۴
خداوند په اسرائیل وبا ولګوله او له اسرائیل نه اویا زره سړي
پریوتل ۱۵ او الله په اسرائیل فرښته واستوله دَ هلاکولو دَ پاره ۱۵
او چه لا هلاکول ئې خداوند ولیدل او په هغه آفت اندوهګین
شه او هلاکونکي فرښتې ته ئې وویل اوس بس دې خپل لاس
پریږده او فرښته دَ خداوند دَ ارنان یبوسي درمند څخه
ولاړه وه ۱۶ او داؤد خپلې سترګې پورته کړې نو دَ خداوند فرښته ۱۶
ئې دَ آسمان په مینځ او دَ زمکې په مینځ کښې ولاړه ولیده او
وکښلې توره ئې په لاس کښې وه په اورشلیم غوړیدلې وه او

داؤد او سپین ږیري په خپلو مخونو پریوتل پوشیده په شړیو
۱۷ ۱۷ او داؤد الله ته ووېل چه زه هغه نه یم څه؟ چه دَ اُمّت
دَ شمار دَپاره مِ امر وکړ او زه هغه یم چه خطا او په بدي
مِ وکړل او دغو گډورو څه کړي دي نو اي خداوندَ څما
الله ستا لاس دِ په ما وي او څما دَ پلار په کور او نه دَ وبا
۱۸ کولو دَپاره ستا په اُمّت ۱۸ نو فرښتي دَ خداوند له جاد سره
خبره وکړه چه ته داؤد ته ووایه چه داؤد دِ وخیژي چه خداوند
۱۹ ته دَ اُرنان هغه یبوسي په درمند کښ مذبح ودروي ۱۹ نو
داؤد دَ جاد دَ کلام په موافق چه دَ خداوند په نُوم سره ئې
۲۰ خبري کولي وخوت ۲۰ او اُرنان وجاروت او وئې کتل او فرښته ئې
ولیده ده او دَده څلورو زامنو ورسره ځانونه پټ کړل او اُرنان
۲۱ غنم غوبل کول ۲۱ او داؤد اُرنان ته ورغي او اُرنان وکتل او داؤد
ئې ولید او له درمنده ووت او داؤد ته ئې په مخ و زمکي ته
۲۲ سجده وکړه ۲۲ نو داؤد اُرنان ته ووېل چه ما ته دَ درمند
ځاي راکړه چه زه په کښ خداوند ته مذبح بنا کړم په پوره روپیو
۲۳ ئې راکړه چه وبا له خلقو بنده شي ۲۳ نو اُرنان داؤد ته ووېل چه
ځان له ئې واخله او څما خاوند بادشاه دِ هغه وکړي چه دَده
په سترگو کښ ښه وي گوره زه تا ته غويي دَ سیزلو دَپاره درکړم
او خپرونه دَ بالن دَپاره او غنم دَ هدیي دَپاره زه هغه ټول درکوم
۲۴ ۲۴ او داؤد بادشاه اُرنان ته ووِ نه نه: بلکه په پیرودلو سره ئې په
پوره روپیو سره پیرم ځکه چه هغه چه ستا دِي خداوند له ئې
۲۵ نه اخلم او نه وړیا قرباني خیژوم ۲۵ او داؤد اُرنان ته دَ هغه ځاي
۲۶ دَپاره سره زر ورکړه چه ټول ئې شپږ سوه مثقاله وه ۲۶ او داؤد
هلته دَ خداوند دَپاره مذبح بنا کړه او سیزونکي او دَ سلامتیِ
ذبیحي ئې وخیژولي او خداوند ئې وباله او ده په اور کښ له آسمانه

خواب ورکړ دَ سیزلو په مذبح باندِ ۲۷ او خداوند فرښتي ته امر ۲۷
ورکړ او هغي تُوره خپله تیکي ته وګرزوله
۲۸ په دغه وقت کښ چه داؤد ولید چه خداوند ده ته ۲۸
دَ ارنان یبوسِي په درمند کښ ځواب ورکړ نو هلته ئي ذبح وکړه
۲۹ او هغه مسکن دَ خداوند چه موسیٰ په بیابان کښ جوړ کړ ۲۹
او مذبح دَ سیزونکو په دغه وقت دَ جبعون په لوړه کښ وه ۳۰ او ۳۰
داؤد نوان نه لاره چه دَ هغه دَ وړاندِ ورشِي چه له الله نه
پوښتنه وکړِي ځکه چه دیَ دَ خداوند دَ فرښتي دَ تُورِي له جهت
په دهشت شه ؛

## دوه ویشتم باب

۱ او داؤد وُوِ دا هغه دَ خداوند الله کور دیَ او دا هغه مذبح ۱
دَ سیزونکو دَ اسرائیل دَه ۲ او داؤد هغو ټولو بیګانهٔ ته دَ ۲
راټولولو (چه دَ اسرائیل په زمکي کښ وُو) امر وکړ او ده دَ
ځلور کوټیزو کاڼرو دَ تراشلو دَپاره سنګتراشان مقرر کړل دَ
بیت الله دَ بِنا کولو دَپاره ۳ او داؤد ډیرِي او سپیني دَ دروازو دَ ۳
تنبو دَ میخونو او دَ وصل کولو دَپاره تیار کړل او بي له توله ډیر
زیر ۴ او دَ لمنځي لرګي چه شمار ئي نه لاره ځکه چه صیدونیانو ۴
او صوریانو به داؤد ته ډیر دَ لمنځي لرګي راوړل ۵ او داؤد وویل ۵
چه ځما زوي سلیمان وړوکي اوپوس دیَ او هغه بیت چه یهوه
ته بِنا کیږي په نوم سره به ډیر لوي وِي اوجلال به ئي په ټولي
زمکي کښ وِي نوزه به ئي ده ته تیار کړم
۶ او ده سلیمان زوي خپل دي دَپاره وباله او وصیت ئي ورته ۶
وکړ چه دیَ دَ یهوه الله دَ اسرائیل لره بیت بِنا کړِي ۷ او داؤد سلیمان ۷
ته وُوِ اي زویه ځما په زړه کښ وه چه زه به دَ یهوه الله خپل
ونوم ته بیت بنا کړم ۸ او ماته کلام دَ یهوه وشه ویل ئي چه ته ۸

به څما نوم ته کور جوړ نه کړي څکه چه تا ډيري وينې توي کړي
دي نو نه به څما نوم ته بيت بِنا نه کړي څکه چه تا څما دَ وړاندِ
۹ په زمکه ډيري ويني توي کړي دِي ۹ گوره تا لره به يو څوي وزيږي
چه هغه به صاحب دَ راحت وِي او زه به ده ته دَده له ټولو
دُښمنانو دَده چه ور نه چاپيره دِي راحت ورکړم څکه چه دَ هغه
نوم به سليمان وِي او زه به دَده په ورځو کښې په اسرائيل کښې
۱۰ سلامتي او سکون کيږدم ۱۰ هغه به څما نوم ته کور جوړ کړي او
هغه به څما دَپاره زوي وِي او زه به ورته دَ پلار دَپاره يم او
دَده دَ بادشاهي تخت به په اسرائيل تر ابده پوري ټينګ کړم
۱۱ ۱۱ اوس اي څما زويه خداوند دِ ستا سره وِي او کامياب کيږه او
ته دَ يهوه خپل الله بيت بِنا کړه لکه چه ستا په باب ئې خبره وکړه
۱۲ ۱۲ په تحقيق سره يهوه تا ته دِ هوش او فهم درکړي او تا ته دِ
په اسرائيل فرمان درکړي دَپاره دَ ساتلو دَ توريت دَ يهوه الله
۱۳ ستا ۱۳ نو ته به کامياب شي چه ته دَ عمل کولو دَپاره دَ هغه حکمونه
او عدالتونه وساتي چه يهوه موسیٰ ته دَ اسرائيل دَپاره وفرمايل
۱۴ چه مضبوط او ګړندي شه مه ويريږه او مه ترسيږه ۱۴ گوره ما
په خپلي خوارئ کښې دَ يهوه دَ بيت دَپاره سل زره قنطاره سره زر
او زر زره قنطاره سپين زر تيار کړي دِي او زيړ او اوسپنه بې وزنه
څکه چه داډير دِي او لرګي او کاڼي مِ تيار کړي دِي او ته به ئې
۱۵ په دغو زيات کړي ۱۵ او تا څخه ډير عمل کونکي کارګران سنګتراشان
۱۶ او معماران او نجاران او ټول دانايان په هر کارګرئ کښې ۱۶ دَ سرو
زرو او دَ سپينو زرو او دَ زيړو او دَ اوسپيني شمار نشته پورته
۱۷ شه او کار کوه او خداوند دِ له تا سره وِي ۱۷ او داؤد ټولو سردارانو
۱۸ دَ اسرائيل ته وفرمايل چه دَده دَ زوي سليمان مدد وکړي ۱۸ ستاسي
خداوند الله له تاسي سره نه دَئ څه ؟ او تاسي ته ئې له هري

خوا نه راحت درکړې دئ ځکه چه ده اوسیدونکي دَ زمکه ځما په
لاس ورکړل او زمکه دَ خداوند دَ وړاندِ او دَ ده دَ اُمّت دَ وړاندِ
ودربلي شوه ۱۹ نو اوس خپل زړونه او ځانونه دَ خداوند ستاسي ۱۹
دَ الله ولټولو ته کېږدئ او پورته شئ او دَ یهوه الله مقدّس
بنا کړئ چه دَ یهوه دَ عهد صندوق او دَ الله دَ قدس کالي و
هغه بیت ته چه دَ یهوه نوم ته بنا کیږي راوړلي شي *

# دري ويشتم باب

۱ او داؤد زوړ شه او په ورځو موړ شه او سلیمان زوي ۱
خپل ئې په اسرائیل بادشاه کړ ۲ او ټول سرداران دَ اسرائیل ۲
او کوهینان او لاویان ئې جمع کړل ۳ او لاویان دَ دیرشو کالونو او ۳
له دي نه په پاس وګنړلي شول او دَدوي شمار دَدوي دَ سرونو
په موافق له جبّارو نه اته دیرش زره وُو ۴ له دغو نه څلیرویشت ۴
زره وُو چه دَ بیت دَ یهوه په کار باندِ ناظران وُو او شپږ زره
کاتبان او قاضیان وُو ۵ او څلور زره دربانان او څلور زره دَ خداوند ۵
ثناخوان وُو په هغو کالو چه دَ ثناخوانئ دَپاره ما جوړ کړل ۶ او ۶
داؤد هغوي بني لاوي ته دَ ویش په موافق وویشل جرشون او
قهات او مراري ته ۷ له جرشونیانو لعدان او شمعي ۸ دَ لعدان زامن ۷ ۸
چه سر وُو یحیئیل او یوثام او یوئیل دري ۹ او دَ شمعي زامن ۹
شلومیت او حزئیل او هاران دري دغه دَ عدان دَ پلارونو سرونه
وُو ۱۰ او دَ شمعي زامن یحث او زینا او یعوش او بریعه دغه دَ ۱۰
شمعي څلور زامن ۱۱ او یحث سر وه او زیزه دویم لیکن دَ یعوش ۱۱
او دَ بریعه اولاد ډیر نه شه ځکه چه دَ یوه پلار دَ کور په بازخواست
کښ وُو ۱۲ دَ قهات زامن عمرام او یصهار او حبرون او عزئیل ۱۲
څلور ۱۳ دَ عمرام زامن هارون او موسیٰ او هارون بیل کړې ۱۳

شنه چه دَ قدس الاقداس تقدیس وکړي دَي او دَده زامن ترابده
چه دَ خداوند دَ وړاندِ خوشبوئي وسیزي او دَده خدمت کوي او
۱۴ دَده په نوم تر ابدَ برکت ورکوي ۱۴ او موسیٰ مردِ الله دَده زامن
۱۵ دَ لاوِي په فرقې کښ وبللي شول ۱۵ دَ موسیٰ زامن جرشوم او الیعزر
۱۶ ۱۷ ۱۶ دَ جرشوم زامن شبوئیل سر هغه وه ۱۷ او دَ الیعزر زامن رحبیاه
هغه سر وه او دَ الیعزر نور زامن نه وُو او دَ رحبیاه زامن
۱۸ ۱۹ بیحده ډیر وُو ۱۸ دَ یِصّهار زامن شلومیت سر ۱۹ دَ حبرون زامن
یریاهو هغه سر آمریاه هغه دویم یخزئیل هغه دریم او یقمعام
۲۰ هغه څلورم ۲۰ دَ عزئیل زامن میکا هغه سر او یشتیاه هغه
۲۱ دویم ۲۱ دَ مراري زامن محلي او موشي دَ محلي زامن العازار
۲۲ او قیس ۲۲ او العازار مړ شه او زامن ئي نه وُو بلکه لونړه
ئي وي او هغوي دَ قیس زامنو واخستي چه دَدوي ورونړه وُو
۲۳ ۲۴ ۲۳ دَ موشي زامن محلي او عادر او یریموت دري ۲۴ دغه دَ لاوِي
زامن دي موافق دَ کورونو دَدوي دَ پلرونو سرونه دَ پلرونو په
موافق دَدوي دَ بازخواست په شمار په نومونو کښ موافق دَ
سرونو دَدوي کارکونکي دَ کار دَپاره دَ خدمت دَ بیت دَ یهوه
۲۵ له شلو کلونو او له دینه په پاس ۲۵ ځکه چه داؤد وویل چه
خداوند الله دَ اسرائیل خپل اُمّت ته آرام ورکړ او دي په اوریشلیم
۲۶ کښ ترابده و اوسید ۲۶ او هم لاویانو له نه وه چه بیا مسکن
۲۷ او دَ هغي ټول کالي دَ خدمت دَپاره پورته کړي ۲۷ ځکه چه دَ
داؤد دَ وروستو کلام په موافق دغه شمار دَ لاوِي دَ اولاد له
۲۸ شلنیو کالونو او له دینه په پاس وکړلي شه ۲۸ ځکه چه دَدوي
ودریدنه دَ بني هارون دَ لاسونو په مینځ کښ وه دَ بیت یهوه په
خدمت په درګاو او په حُجرو کښ او په پاکولو دَ هر قدس او دَ
۲۹ بیت یهوه دَ خدمت په کار ۲۹ او دَ نذرونو دَ ډوډیٔ دَپاره او دَ

هديي دَ ميدي دَپاره او دَ فطيرو دَ نرئ ډوډئ دَپاره او دَ تبئ
شوي دَپاره او دَ رَقولي شوي دَپاره او دَ بولئِ پيماني او قدر دَپاره
۳۰ ۳۰ او دَپاره دَ دريدلو صبا په صبا دَ خداوند دَ حمد او دَ ثنا كولو
۳۱ دَپاره او هم هسي په نمابنام كښ ۳۱ او چه ټولي سيځونكي خداوند
ته خيژوي په سبتونو كښ او په نويو مياشتو او په مقرر وقتونو
كښ دَدوي په شمار سره دَ هغو رسمونو په موافق چه ورباندِ
۳۲ وشه هميشه دَ خداوند دَ وړاندي ۳۲ او چه ساتنه دَ خيمي دَ
اجتماع او ساتنه دَ مقدّس او ساتنه دَ بني هارون دَ دوي ورونړه
دَ بيت يهوه دَ خدمت دَپاره ✤

# څلور ويشتم باب

۱ ۱ او دَپاره دَ بني هارون دَ دوي حانقي دا وي دَ هارون زامن ناداب
۲ او ابيهو العازار او اثامار ۲ او ناداب او ابيهو له خپل پلار نه
وړاندِ مړه شول او دَ دوي زامن نه وُو او العازار او اثامار كوهيني
۳ كوله ۳ او داؤد صدوق دَ العازار له زامنو نه او اخيمالك له
ايثامار له زامنو نه دَ دوي دَ عهدي په موافق په خدمت كښ
۴ وويشل ۴ او په بني العازار كښ دَ ايثامار له جبّارانو نه زيات
سرونه ومندلي شول او دوي وويشلي شول له بني العازار سرونه
دَ پلرونو دَ كور شپاړس وُو او دَ بني ايثامار دَ دوي دَ پلارونو
۵ دَ كور آته ۵ او په ګوټيي پچي سره وويشلي شول دغه سره دَ هغو
څكه چه سرداران دَ مقدِّس او سرداران دَ الله له بني العازاره
۶ او له بني ايثاماره وُو ۶ او شمعياه كاتب له ليويانو نه دَ تنثيل
زوي لِئ دَ بادشاه او دَ سردارانو او دَ صدوق هغه كوهين او
اخيملك بن ابياثار او دَ كوهنانو او دَ لاويانو دَ پلارونو دَ سرونو
دَ وړاندِ وليكل دَ يوه پلار كور دَ ايلعازار دَپاره ونيولي شه او

۷ يو دَ ايثامار دَپاره و نيولي شه ۷ او اوّله پچه يهوياريب لره وختله
۸ ۹ او دويمه يدعياه لره ۸ دريمه حارم لره څلورمه سعوريم لره ۹ پنځمه
۱۰ ملكياه لره شپږمه ميامين لره ۱۰ اومه هقوص لره اتمه ابياه لره
۱۱ ۱۲ ۱۱ نهمه يشوع لره لسمه شكنياهو لره ۱۲ يوولسمه الياشيب لره دولسمه
۱۳ ۱۴ الياقيم لره ديارلسمه حُفه لره ۱۳ څوارلسمه يشباب لره ۱۴ پنځلسمه
۱۵ بلجه لره شپاړسمه اِمّير لره ۱۵ اوه لسمه دحيزير لره اته لسمه
۱۶ ۱۷ هفصيص لره ۱۶ نولسمه فتحياه لره شلمه يحزقيل لره ۱۷ يوويشتمه
۱۸ ياكين لره دوويشتمه جامول لره ۱۸ دري ويشتمه دلاياهو لره څليرويشتمه
۱۹ معزياهو لره ۱۹ نو دغه دَ دوي دَ عهدي بازخواست وه دَدوي دَ
خدمت چه بيت يهوه ته راشي لكه رسم دَدوي دَ خپل پلار هارون
۲۰ په لاس لكه چه هغه ته خداوند الله دَ اسرائيل وفرمايل ۲۰ او
باقي بني لاوي دا وُو دَ عمرام له زامنو شوبائيل دَ شوبائيل له زامنو
۲۱ يحدياهو ۲۱ او دَ روحبياهو دَپاره له بني روحبياهو نه هغه سردار
۲۲ يشياه ۲۲ او له اليصهار له مينځه شلوموت او له بني شلوموت نه
۲۳ ياحت ۲۳ او له بني حبرون نه يريعه امرياهو دويم او يحزئيل
۲۴ دريم او يقمعام څلورم ۲۴ له بني عزّي ايل ميكا له بني ميكا شامور
۲۵ ۲۶ ۲۵ ورور دَ ميكا يشياه او له بني يشياه نه ذكرياهو ۲۶ دَ مراري زامن
۲۷ محلي او موشي دَ يعزياهو زوي بنو ۲۷ بني مراري له يعزياهو
۲۸ نه بنو او شوهم او زكور او عبري ۲۸ له محلي نه العازر او
۲۹ دَ هغه زامن نه وُو ۲۹ او قيش چه وه دَ قيش زوي يرحمئيل
۳۰ ۳۰ او دَ موشي زامن محلي او عيدر او يريموث دغه دَ لاويانو
۳۱ زامن دي دَ دوي دَ پلرونو دَ كورونو په موافق ۳۱ او دَ دوي هم
له خپلو ورونړو بني هارون سره پچي اچولي وي په روبرو دَ داؤد
بادشاه او دَ صدوق او دَ اخي ملك او دَ پلرونو دَ كوهينانو سرونو
٩ دَ هغو چه دَ پلرونو سرونه وُو لكه دَدوي وروكي ورورونه *

# پنځه ویشتم باب

۱ او داؤد او سردارانو دَ لښکر دَ خدمت دَپاره بني آساف او ۱
آهیمان او یدوثون مقرّر کړل چه په رباب او په ستارونو او
ژنګولو سره نبوّت وکړي او دَدوي شمار له کارکوونکیو کسانو سره
موافق دَ خدمت دَدوي دا وه ۲ له بني آساف زکور او یوسف او ۲
نثنیاه او اسرایلاه دَ آساف زامن چه دَ آساف په لاس وُو دَ
بادشاه په لاسونو کښې نبوّت کاوه ۳ له یدوثون نه دَ یدوثون ۳
زامن جدلیاهو او صري او یشعیاهو او حشبیاهو او متثیاهو
شپږ سره دَدوي دَ پلار یدوثون په لاس په ستار سره به ئې په
یهوه نبوّت کاوه او حمد یهوه لره ۴ له هیمان نه بني هیمان بقیاهو ۴
او متنیاهو عزي‌ایل شبوایل او یریموت او حنانیاه حناني ایلیاثه او
جدلتي او رومَمتي عزر او یشبقاشه او ملوئي او هوتیر او محزیوت
۵ دا ټول هیمان لره زامن رویا لیدونکي دَ بادشاه په کلام‌الله سره ۵
قرنا پورته کولو دَپاره وُو او الله هیمان ته څوارلس زامن او دري
لونړه وبخښلي ۶ دا ټول دَدوي دَ پلار په لاسونو کښې وُو دَ بیت یهوه ۶
په سرود دَپاره په ژنګولو او ربابونو او ستارونو سره دَ بیت‌الله دَ
خدمت دَپاره دَ بادشاه په لاسونو کښې آساف او یدوثون او هیمان
۷ او دَ هغو شمار دَدوي دَ ورونړو سره چه خداوند لره په سرود ۷
زده کړي وُو ټول چه تمیزوال وُو دوه سوه او اته اتیا وو ۸ او دوي ۸
دَ خپلې ساتنې دَپاره پچې واچولې ټول واړه‌وروکي لکه لوی استاد سره
دَ شاګرده ۹ نو اول هِسک دَ آساف یوسف لره وخوت هغه دویم ۹
جدلیاهو لره هغه او دَده ورونړه او دَده ځامن دولس وُو -
۱۰ هغه دریم زکور لره دده زامن او دده ورونړه دولس وُو ۱۱ څلورم ۱۰ ۱۱
یصري لره دَده زامن او دَده ورونړه دولس ۱۲ پنځم نثنیاهو لره دَده ۱۲

۱۳ زامن او دَده ورونه دولس ۱۳ شبوئیل بقیاهو لره دَده زامن او
۱۴ دَده ورونه دولس ۱۴ اووم یشرابیلاه لره دَده زامن او دَده ورونه
۱۵ دولس ۱۵ اتم یشعیاهو لره دَده زامن او دَده ورونه دولس -
۱۶ ۱۷ ۱۶ نهم متنیاهو لره دَده زامن او دَده ورونه دولس ۱۷ لسم
۱۸ شمعی لره دَده زامن او دَده ورونه دولس ۱۸ یوولسم عزرایل
۱۹ لره دَده زامن او دَده ورونه دولس ۱۹ دولسم حشیاه لره دَده
۲۰ زامن او دَده ورونه دولس ۲۰ دیارلسم شوبائیل لره دَده زامن
۲۱ او دَده ورونه دولس ۲۱ څوارلسم متثیاهو لره دَده زامن او
۲۲ دَده ورونه دولس ۲۲ پنځلسم یریموث لره دَده زامن او دده ورونه
۲۳ دولس ۲۳ شپاړسم حننیاهو لره دَده زامن او دَده ورونه
۲۴ دولس ۲۴ اوه‌لسم یشبقاشه لره دَده زامن او دده ورونه دولس
۲۵ ۲۶ ۲۵ اتلسم حنانی لره دَده زامن او دَده ورونه دولس ۲۶ نولسم
۲۷ ملوثی لره دَده زامن او دَده ورونه دولس ۲۷ شلم ایلیاثه لره
۲۸ دَده زامن او دَده ورونه دولس ۲۸ یوویشتم هوثیر لره دَده زامن
۲۹ او دَده ورونه دولس ۲۹ دوویشتم جدلتی لره دَده زامن او دَده
۳۰ ورونه دولس ۳۰ درویشتم محزیوت لره دَده زامن او دَده ورونه
۳۱ دولس ۳۱ څلیرویشتم درممتی‌عازر لره دَده زامن او دَده ورونه دولس

## شپږویشتم باب

۱ او دَ دروانځیانو حلقی له قورحیانو مشلمیاهو بن قوری له
۲ بنی آساف ۲ او مشلمیاهو لره زامن ذکریاهو مشر یدیعئیل همغه
۳ دویم زبدیا همغه دریم یتنیئل همغه څلورم وه ۳ عیلام همغه
۴ پنځم او یهوحانان همغه شپږم او الیهوعینی همغه اووم وه ۴ او
دَ عوبیدآدوم زامن وُو شمعیاهو همغه مشر او یهوزاباد همغه
دویم او یوآخ همغه دریم او ساکار همغه څلورم او نتنئیل همغه

پنځم ۵ عمیئیل هغه شپږم او یساکار هغه اووم او پعلتي هغه ۵
اتم ځکه چه خداوند هغه ته برکت ورکړ ۶ او دَده زوي ۶
شمعیاه لره زامن وزیږیدل چه دَ خپلو پلرونو په کورکښې ئې
سرداري کوله ځکه چه دوي جبّاران دَ قوّت وُو ۷ دَ شمعیاه ۷
زامن عثني او رفائیل او عوبید الزاباد دَده ورونړه بني قوّت
وُو الیهو او سمکیاهو ۸ دا ټول دَ بني عوبیدآدوم وُو دوي او ۸
دَدوي زامن او دَدوي ورونړه سړي دَ قوّت په زور سره دَ خدمت
دَپاره دوشپیته دَ عوبیدآدوم ۹ او دَ مشلمیاهو زامن او ورونړه ۹
زامن دَ قوّت اتلس وُو ۱۰ او حوسا لره له بني مراري نه زامن وُو ۱۰
شمري هغه سر (چه مشر نه وه لیکن پلار ئې دي سر مقرّر
کړ) ۱۱ حلقیاهو هغه دویم او طبلیاهو هغه دریم او زکریاهو ۱۱
هغه څلورم دَ هوسه ټول زامن او ورونړه دیارلس وُو ۱۲ له ۱۲
دغو نه دَ دروانځیانو حلقي وي دَ جبّارانو له سرونو نه ساتندویې
لرونکي له خپلو ورونړو سره دَ بیت یهوه دَ خدمت دَپاره ۱۳ او دوي ۱۳
پچي واچولي وړوکي لکه لوي موافق دَ کورونو دَ پلرونو دَ دوي دروازو
لره ۱۴ نو دَ مشرق له طرفه پِسک شلمیاهو لره پریوت او دَده ۱۴
زوي زکریاهو لره په هوښیار صلاح کار ئې پچي واچولي او دَده پِسک
دَ شمال په لوري ووت ۱۵ عوبیدآدوم لره دَ جنوب په لوري او ۱۵
دَده زامنو لره دَ هغه انبارخانې ۱۶ دَ شفیم او دَ هوساه دَپاره دَ ۱۶
مغرب په لوري دَ شلکات له دروازې سره دَ ختني په شاه راه
کښې ساتندونکيَ په برابر دَ ساتندونکي ۱۷ دَ مشرق په لوري شپږ ۱۷
لاویان وُو او دَ شمال په لوري څلور دَ ورځې دَپاره دَ جنوب
په طرف څلور دَ ورځې دَپاره او دَ انبارخانې په طرف دوه دوه
۱۸ دَ پربار په مغرب څلور په شاه راه او دوه په پربار کښې ۱۸
۱۹ دا حلقي دَ دربانانو له بني قورحیانو او دَ بني مراري وي ۱۹

٢٠ ٢٠ او هغه لاويان (چه وُو) اخياه دَ بيت‌الله په خزانو او
٢١ دَ اقداسو په خزانو ٢١ بني‌لعدان دَ هغه جيرشوني لعدان زامن
٢٢ سرونه دَ پلارونو هغه خرشوني لعدان لره يحي‌ايلي ٢٢ دَ يحي‌ايلي
زامن زيتام او يوايل ورور دَده دَ بيت يهوه په خزانو وُو
٢٣ ٢٣ له عمراميانو او له يصهاريانو او له حبرونيانو او له -
٢٤ العيزي‌ايليانو وُو ٢٤ شبوايل زوي دَ جرشوم زوي دَ موسىٰ آمير
٢٥ په خزانو وه ٢٥ او دَ هغه ورور له اليعزر رحبياهو زوي ئي
او يشعياهو زوي ئي او يورام زوي ئي او زكري زوي ئي او
٢٦ شلوموت زوي ئي. ٢٦ دا شلوموت او دَده ورونړه په هغو ټولو
خزانو دَ اقداسو باندِ وُو چه داؤد بادشاه او سرونو دَ پلرونو
٢٧ او سردارانو دَ لښكر مقدسي كړلي ٢٧ چه له جنګونو او له
٢٨ لوټونو ئي دَ خداوند دَ كور دَ آبادولو دَپاره مقدّس كړي وي ٢٨ او
هر هغه څه چه سموايل رؤياليدونكي او شاؤل زوي دَ قيس او
ابنير زوي دَ نير او يوآب زوي دَ ضرويه مقدس كړي وُو هغه
ټول مقدّس كړي شوي دَ شلوموت او دَده دَ ورونړو په لاس
٢٩ وُو ٢٩ له يصهاريانو نه كننياهو او دَده زامن دَ باندِ دَ بندوبست
٣٠ دَپاره په اسرائيل باندِ حاكمان او قاضيان وُو ٣٠ له حبرونيانو
حشبياهو او دَده ورونړه زامن دَ قوت يو زر اوه سوه په بازخواست
دَ اسرائيل باندِ وُو پوري‌خوا دَ يردن دَ مغرب په لوري په ټول
٣١ كار دَ خداوند كښ او په خدمت دَ بادشاه ٣١ له حبرونيانو يرياه
هغه سر دَ حبرونيانو موافق دَده دَ نسبونو دَ پلرونو دَ داؤد دَ
بادشاهِي په څلويښتم كال كښ دَدوي تلاش وشه په يعزير جلعاد
٣٢ كښ جباران دَ قوّت په دوي كښ وموندلي شول ٣٢ او دَده ورونړه
زامن دَ قوّت دوه زره اوه سوه سرونه دَ پلرونو وُو او داؤد
بادشاه هغوي په رؤبيانو او جاديانو او په نيمي نرقي دَ منسي

په ټولو کارونو دَ الله او کارونو دَ بادشاه بانډِ تفحص کونکي مقرّر کړل ؞

# اوه ويشتم باب

۱ آ او بني اسرائيل دَ دوي دَ شمار په موافق سرونه دَ هغو دَ پلرونو
سرداران دَ زرګونو او دَ سلګونو او دَ دوي دَ حاکمانو چه دَ بادشاه
خدمت به ئې کاوه کارونو دَ هغي حلقي چه راغلي وتلي به مياشت
په مياشت او دَ کال په ټولو مياشتو کښ کيده دَ هرې يوي حلقي
۲ څليرويشت زره وُو ۲ په اولي حلقي دَ هغه به اولي مياشتي بانډِ
ياشابعام بن زبديئيل وه او دَ هغه په حلقي کښ څليرويشت
۳ زره وُو ۳ له بني فارص هغه سر دَ ټولو سردارانو دَ لښکرو
۴ دَ هغه اولي مياشتي دَپاره وه ۴ او دَ هغه دويمي مياشتي په حلقي
دودائې هغه اخوحي وه او دَ هغه له حلقي نه مقلوث هغه
۵ آمير وه او دَ دغه په حلقي کښ څليرويشت زره وُو ۵ دَ دريم لښکر
سردار دَ دريمي مياشتي دَپاره بناياهو بن يهوياداع هغه سردار
۶ کوهين او دَده په حلقي کښ څليرويشت زره وُو ۶ دا هغه بناياهو
دَي چه په ديرشو کښ بناغلي وه او په ديرشو بانډِ وه او دَده
۷ له حلقي نه عميزاباد دَده زوي وه ۷ هغه څلورم دَ څلورمي مياشتي
دَپاره عساهيئيل ورور دَ يوآب او زبدياه دَ هغه زوي ورپسي
۸ وه او دَده په حلقي کښ څليرويشت زره وُو ۸ هغه پنځم دَ پنځمي
مياشتي دَپاره هغه سردار شمحوث يزراحي وه او دَده په حلقي
۹ کښ څليرويشت زره وُو ۹ هغه شپږم دَ شپږمي مياشتي دَپاره عيرا
بن عقيش هغه تقوعي وه او دَده په حلقي کښ څليرويشت
۱۰ زره وُو ۱۰ هغه اوم دَ اومي مياشتي دَپاره حالص هغه پلوني له
۱۱ بني افرائيمه وه او دَده په حلقي کښ څليرويشت زره وُو ۱۱ هغه اتم
دَ اتمي مياشتي دَپاره سبکي هغه حوشاتي له زارحيانو وه او دَده

۱۲ په حلقي کښې څلېرويشت زره وُو ۱۲ هغه نهم دَ نهمي مياشتي
دَپاره ابيعزر هغه عنتوتي له بنيامينه وه او دَده په حلقي کښې
۱۳ څلېرويشت زره وُو ۱۳ هغه لسم دَ لسمي مياشتي دَپاره مهري
هغه نطوپاتي له زارحيانو وه او دَده په حلقي کښې څلېرويشت
۱۴ زره وُو ۱۴ هغه يولسم دَ يولسمي مياشتي دَپاره بناياه هغه
پرعاثوني دَ بني افرائيم او دَده په حلقي کښې څلېرويشت زره وه -
۱۵ ۱۵ هغه دولسم دَ دولسمي مياشتي دَپاره حلدي هغه نطوپاتي
له عتنيل وه او دَده په حلقي کښې څلېرويشت زره وُو
۱۶ ۱۶ او دَ اسرائيل په فرقو باندِ دَ راؤبيانو امير اليعزر بن
۱۷ ذکري دَ شمعونيانو دَپاره شفطياهو بن معکه ۱۷ دَ لاويانو حشبياه
۱۸ بن قموئيل دَ هارون صادوق وه ۱۸ دَ يهوداه اليهو دَ داؤد له ورونړو
۱۹ نه دَ يشاکار عمري بن ميکائيل ۱۹ دَ زبولون يشمعياهو بن عوبدياهو
۲۰ دَ نفتالي يريموث بن عزرئيل ۲۰ دَ بني افرائيم هوشا بن عززياهو
۲۱ د نيمي فرقي دَ منسي يوايل بن پداياهو دَ نيمي فرقي دَ منسي په
۲۲ جلعاد کښې يدّو بن ذکرياهو دَ بنيامين يعسي ايل بن ابنير ۲۲ دَ دان
۲۳ دَپاره عزرايل بن يروحام دغه دَ اسرائيل دَ فرقو سرداران وُو ۲۳ او
داؤد شل کلني او له دي نه کم شمار وا نه خست ځکه چه
خداوند وويل چه اسرائيل به دَ آسمان دَ ستوريو په شان
۲۴ ډېر کړي ۲۴ يواب ابن ضرويه په گنړلو سر شه او پوره ئې نه کړل
او په دي کار په اسرائيل غضب وشه او شمار دَ داؤد بادشاه
دَ روزنامي په حساب کښې درج نه شه
۲۵ ۲۵ او دَ بادشاه په خزانو عزماوث بن عديئيل او په هغو
انبارخانو چه په پټيو په ښهرونو او په کليو او په کوټونو کښې
۲۶ وي يهوناثان بن عزياهو وه ۲۶ او په مزدورانو په پټي کښې دَ
۲۷ خاوري دَ کار دَپاره عزري بن کلوب وه ۲۷ او دَ انگورو په باغونو

ثمعي هغه رامائي وه او په توئيدل د انكورستانو د شيرئ د
۲۸ ته خانو دپاره زبدي بن شفمي وه ۲۸ او په هغو زيتونو او انځيرو
چه په كوز ميدان كښ وُو بعل‌حانان هغه جديري وه او په تهخانو
۲۹ د تيلو د زيتون يوعاش وه ۲۹ او په هغو غوايانو چه په شارون
كښ څريدل شطري هغه شاروني وه او په هغو غوايانو چه په
۳۰ خوړونو كښ وُو شافاط بن عدلائي وه ۳۰ او په اوښانو باندِ اوبيل
هغه اسمعيلي وه او په هغو خرونو باندِ يحدياهو هغه ميرونوتي
۳۱ وه ۳۱ او په ميږو باندِ يازيز هغه هاجيري دا ټول سرداران د
مالونو چه دَ داؤد بادشاه وو
۳۲ ۳۲ او يهوناثان تره دَ داؤد صلاح كار هوښمند سړي او دَده
۳۳ كاتب وه او يحي‌ايل بن حكموني د بادشاه له زامنو سره وه ۳۳ او
اخي‌توفل دَ بادشاه صلاح كار وه او هوشي هغه آركي د بادشاه
۳۴ ملكري وه ۳۴ او پس له اخي‌توفل يهوياداع بن بناياهو او ابياثار
وُو او د بادشاه د لښكر سردار يوآب وه *

# اته ويشتم باب

۱ ۱ او داؤد ټول سرداران د اسرائيل اورشليم ته جمع كړل سرداران
د فرقو او سرداران د حلقو د خدمتكارانو د بادشاه او سرداران
د زركونو او سرداران د شلكونو او سرداران د ټول مال
مويشي د بادشاه او دده د ځامنو سره له خصيانو او له بهادرانو او
۲ له ټولو جبارانو د قوت ۲ او داؤد بادشاه په خپلو پښو ودريده
او وئي ويل اي څما ورونړو او اي څما اُمته څما واوريِ څما
په زړه كښ وه چه زه به د خداوند د عهد صندوق لره د
آرام كور او څما د الله د پښو د قدمونو تكيه‌گاه بنا كړم او
د بنا كولو دپاره ما تياري كړي وه ۳ ليكن الله راته وويل چه
۳

ته به ځما نوم ته کور بنا نه کړې ځکه چه ته د جنګونو سړي
۴ يې او تا وينې توې کړې دي ۳ او خداوند الله د اسرائيل زه
له ټوله کوره د پلار ځما زه غوره کړم چه زه ترابده پوري په
اسرائيل بادشاه شم ځکه چه ده يهوداه په امير غوره کړ او د
يهوداه له کوره ځما د پلار کور او ځما د پلار له ځامنو ئې په
۵ ما رضا ولرله چه په ټول اسرائيل مې بادشاه کړي ۵ او ځما له
ټولو زامنو نه (ځکه چه خداوند ماته ډير زامن راکړي دي) ده
ځما زوي سليمان غوره کړ چه د خداوند د بادشاهئ په تخت
۶ په اسرائيل باندې کښيني ۶ او ما ته ئې ووئيل چه ستا زوي سليمان
هم هغه به ځما کور او ځما دربارونه بنا کړي ځکه چه ما دې غوره
کړ چه ما له د زوي د پاره وي او زه ده له د پلار د پاره يم-
۷ ۷ او زه به د ده بادشاهي ترابده پوري ثابت کړم که دې ټينګ شي
چه ځما کار او ځما فرضونه او ځما عدالتونه وکړي لکه نن ورځ
۸ ۸ او اوس د ټول اسرائيل د خداوند د جماعت په سترګو کښې او
څمونږ د الله په اوريدلو کښې وساتئ او و ئې لټوئ ټول فرضونه
د خداوند الله خپل تا چه تاسي د دې ښې زمکې وارثان شئ. او
پس له تاسي ترابده پوري هغه خپل اولاد ته په ميراث پريږدئ
۹ ۹ او ته اې ځما زويه سليمان ته د خپل پلار الله وپيژنه او په
سالم زړه او په خوشحال ځان سره ئې عبادت کوه ځکه چه خداوند
د ټولو زړونو لټونکي دې او ټول خيالونه د تدبيرونو معلوموي
چه که ته د ده طلب وکړي نو هغه به له تاؤموندلې شي او که ته
۱۰ هغه پريږدي نو دي به دې ترابده پوري سخا وغورزوي ۱۰ اوس
کوره چه خداوند ته غوره کړي چه د مقدّس د پاره بيت بنا کړې
مضبوط شه او کار کوه
۱۱ ۱۱ او داؤد خپل زوي سليمان ته د هغه دهليز او د

کوټنړو او دَ خزانو او دَ بالاخانې او دَ دننو خونو او دَ کفارې
دَ کور نقشه ئې ورکړه ۱۲ او نقشې دَ هر هغه څه چه په روح ۱۲
سره ده ښخه وې دَ بيت يهوه دَ غولې او دَ ټولو کمرو چه دَ هغه
په گرداگرد وې او دَ بيت الله دَ خزانو او دَ اقداسو دَ خزانو
۱۳ او دَ کوهنانو او دَ لاويانو دَ حلقيو دَپاره او دَ بيت يهوه دَ ۱۳
عبادت دَ هر کار دَپاره او دَ بيت يهوه دَ خدمت دَ ټولو کاليو
دَپاره ۱۴ او له سرو زرو په تول سره دَ هغه دَپاره چه له ۱۴
سرو زرو وُو دَ ټولو لوښو دَ عبادت دَپاره او دَ ټولو کاليو
دَ سپينو زرو دَپاره سپين زر په تول سره دَ ټولو کاليو
دَ عبادت دَ عبادت دَپاره ۱۵ او په تول سره دَ سرو زرو دَ ۱۵
شمعدانونو او دَ ډيوو له سرو زرو په تول سره دَ هر قسم
شمعدان په شمعدان او دَ ډيوو دَپاره او دَ سپينو زرو دَ
شمعدانونو دَپاره په تول سره شمعدان په شمعدان او دَ ډيوو
دَپاره شمعدان په شمعدان دَ خدمت په موافق ۱۶ او سره زر ۱۶
په تول سره دَ نذرونو دَ قطارونو دَ ميزونو دَپاره ميز په
ميز او سپين زر دَ سپينو زرو دَ ميزونو دَپاره ۱۷ او دَ ۱۷
سيخونو او دَ کټورو او دَ کاسو دَپاره خالص سره زر او دَ
سرو زرو دَ پيالو دَپاره په تول سره پياله په پياله او دَ سپينو
زرو دَ پيالو دَپاره په تول سره پياله په پياله ۱۸ او دَ بخور دَ منځ ۱۸
دَپاره صاف کړې شوې زر په تول سره او سره زر دَ هغه
گاډې دَ نقشې دَپاره هغه کروبيان هغه چه پرونه ئې وغوړول
او دَ يهوه دَ عهد په صندوق ئې سورې کړل ۱۹ دغه ټول ۱۹
دَ خداوند له لاس نه په ما باندِ ټول کارونه دَدې نقشې پوهان
کړې شوې وم ۲۰ او داؤد خپل زوي سليمان ته ووئيل مضبوط ۲۰
شه او کړندې شه او کار کوه مه وېرېږه او مه ترسېږه

ځکه چه خداوند الله ځما له تا سره دَي نه به دِ پرېږدِي
او نه به دِ ترک کړِي ځو چه ته دَ بيتِ يهوه دَ خدمت ټول
۲۱ کار کامل کړِي ۲۱ او کوره دَ کوهينانو او دَ لاوِيانو حلقي دَ
بيت الله دَ هر خدمت دَپاره حاضر دِي او له تا سره په ټول
کار کښ فدا شوِي په حکمت دِي دَ هر خدمت دَپاره او هغه
سرداران او هغه ټول اُمّت ستا دَ ټولي خبري دَپاره دي ؞

# نهویشتم باب

۱ آ او داؤد بادشاه ټولو ټوليو ته وويل چه سليمان زوي ځما
يواځي الله غوره کړِي دَي دي وړوکي او پېرس دي او دا کار
لوي دي ځکه چه دا هيکل دَ انسان دَپاره نه دَي بلکه دَ يهوه
۲ الله دَپاره دَي ۲ او ما په ټول قدرت خپل سره دَ خپل الله
دَ بيت دَپاره تياري کړِي دَي هغه سره زر دَ سرو زرو دَ شيي
دَپاره او هغه سپين زر دَ سپينو زرو دَ شيي دَپاره او هغه
زيړ دَ زيړو دَ شيي دَپاره او هغه اوسپنه دَ اوسپني دَ شيي
دَپاره او لرګي دَ لرګو دَ شيو دَپاره او دَ جزع کاڼِي او کاڼِي
دَ جړاؤ کولو دَپاره او لهري دار کاڼِي رنګِي رنګِي او ټول
۳ ګران بها کاڼِي او ډير دَ سپين سنګِ مرمرو ۳ او بيا چه
ما دَ خپل الله په کور خپله رضا کيښوده نو ما له خپل خاص
مالَ سره سپين زر او سره زر ځما دَ الله وبيت ته ورکړل
ډير زيات له هغو ټولو چه ما دَ بيتِ مقدس دَپاره تيار کړِي
۴ دِي ۴ دري زره قنطاره سره زر دَ اوفير له سرو زرو او اوه
زره قنطاره صفا کړِي شوِي سپين زر دَپاره دَ نغښتلو دَ ديوالونو
۵ دَ کوټو ۵ سره زر دَ سرو زرو دپاره او سپين زر دَ سپينو
زرو دَپاره او دَ ټول کار دَپاره چه په لاس دَ کاريګرو وِي

او څوک دَي نن ورځ خپل لاس دَ ډکوالي خداوند لره خپل
٦ ځان حاضر کړي ۶ نو سردارانو دَ پلرونو او سردارانو دَ فرقو
دَ اسرائيل او سردارانو دَ زرګونو اودَ سلګونو او دَ بادشاه
٧ دَ کارونو سردارانو خپل ځانونه حاضر کړل ۷ او دوي دَ
بيت الله دَ خدمت دَپاره ورکړل پنځه زره قنطاره او لس زره
درهمه له سرو زرو او لس زره قنطاره دَ سپينو زرو اتلس
٨ زره قنطاره له زيړو او سل زره قنطاره له اوسپني ۸ او چا
څخه چه قيمتي کاڼي وموندلي شول دَ بيتِ يهوه خزاني ته ئي
٩ په لاس دَ يحي‌ايل هغه جرشوني ئي ورکړل ۹ او اُمّت دَ خپلو
ځانونو په ښارولو ډيره خوشحالي وکړه ځکه چه دوي په سالم
زړه سره خداوند ته ځانونه ښارول او داؤد بادشاه په
١٠ لويه خوشحالئ سره خوشحالي وکړه ۱۰ او داؤد دَ ټول جماعت
په سترګو دَ يهوه مبارکي وکړه او داؤد وويل چه ته مبارک
ئي اي يهوه الله دَ اسرائيل پلار څمونږ له ازله تر ابدَ پوري
١١ ۱۱ تا لره اي يهوه لوي او جبورت او فخر او جلال او عظمت
دَي ځکه چه هر هغه څه چه په آسمان او په زمکه کښ دي
تا لره اي يهوه بادشاهي ستا دَه او ته په ټولو سربلند کړي
١٢ شوي يي ۱۲ او دولت او عزّت ستا له طرفه دِي او ته په ټولو
سلطنت کوي او ستا په لاس قوّت اوجبورت دَي او لوئي
١٣ او مضبوطي دَ ټولو دَپاره ستا په لاس دِي ۱۳ او اوس اي
١٤ څمونږ الله مونږ ستا يُو او ستا دَ فخرنامي ثنا کوو ۱۴ ليکن زه
څوک يم او څما اُمّت څوک دَي چه مونږ توان ولرُو چه په
دا شان ځانونه ښاروو ځکه چه ټول له تا دِي او ستا له لاسه
١٥ هغه مونږ درکړي دِي ۱۵ ځکه چه مونږ ستا دَ وړاندِ بيګانه
او مسافر يُو څمونږ دَ ټولو پلرونو په شان يُو څمونږ ورځي په

۱٦ دي زمکي لکه دَ سيورِي او اميد نشته ۱٦ اي يهوه خُمونږ
الله هم دا ټول دولت چه مونږ تيار کړي دي چه تاته ستا
دَ پاک نامه دَپاره بيت بِنا کړُو ستا له لاسه دي او هغه
۱۷ ټول تا لره ۱۷ او زه وپوهيدم اي خُما الله چه ته زړونه ازمائي
او په راستئ رضا لري ما دَ خپل زړه په راستئ سره دا ټول
څان سره حاضر کړي دي او اوس ستا اُمّت چه دلته موجود
دي ما په خوشحالئ سره ليدلي دي په ښادئ سره تا ته
۱۸ څانونه څاروي ۱۸ اي يهوه الله دَ ابراهيم او دَ اسحاق او
دَ اسرائيل څمونږ دَ پلرونو دَ تر ابده پوري ستا دَ اُمّت دَ
زړونو دَ تدبيرونو په فکرونو کښ وساته او دَدوي زړونه په
۱۹ خپل لوري تيار کړه ۱۹ او خُما زوي سليمان ته سالم زړه
ورکړه چه ستا فرضونه ستا شاهدئ او ستا حقونه وساتي
او په ټولو عمل وکړي او چه هغه هيکل بِنا کړي چه ما ورلره
۲۰ تياري کړي دي ۲۰ او داؤد ټول جماعت ته وويل اوس دَ يهوه
خپل الله مبارکي وکړئ او هغه ټول جماعت دَ يهوه الله دَ
پلرونو دَدوي مبارکي وکړه او ټيټ شول او خداوند او بادشاه
۲۱ ته ئي سجده وکړه ۲۱ او خداوند ته ئي ذبحي ذبح کړلي او
خداوند ته ئي دَ دغي ورځي په صبا سيزونکي قربانئ وخيژولي
زر غوايان او زر مړونه او زر وري سره دَ دوي ټولو توبو
۲۲ شوبو او ډيري ذبحي دَ ټول اسرائيل دَپاره ۲۲ او په دغي ورځي
کښ ئي په لويه خوشحالئ سره دَ خداوند دَ وړاند وخوړل
او وڅښل او دوي دوباره سليمان دَ داؤد زوي بادشاه کړ
او دَ يهوه دَپاره ئي دَ امير کيدلو دَپاره مسح کړ او صادوق
۲۳ دَ کوهين کيدلو دَپاره ۲۳ او سليمان دَ يهوه په تخت دَ
خپل پلار داؤد په څاي بادشاه شوي کښيناست او اقبالمند

۲۴ شه او ټول اسرائيل يې فرمان برداري کوله ۲۴ او ټولو سردارانو
او جبّارانو او ټول اولاد دَ داؤد بادشاه هم دَ سليمان
۲۵ بادشاه تر لاندِ لاس ورکول ۲۵ او خداوند سليمان دَ
ټول اسرائيل په سترګو کښ بيحده لوي کړ او ده ته يې
داسي عظمت دَ بادشاهيْ ورکړ چه دَده دَ وړاندِ دَ هيڅ
مَلِک په اسرائيل کښ نه وه
۲۶ ۲۶ او داؤد بن يسّي په ټول اسرائيل بادشاهي کوله
۲۷ ۲۷ او هغه زمانه چه ده په کښ په اسرائيل بادشاهي
وکړله څلويښت کاله وه اوه کاله يې په حبرون کښ بادشاهي
وکړله او دري ديرش کاله يې په اورشليم کښ بادشاهي وکړله
۲۸ ۲۸ او په ډير زوړوالي کښ مړ شه او په ورځو او دولت
او په عزّت موړ شه او سليمان دَده زوي دَده په ځاي
۲۹ بادشاهي وکړه ۲۹ او نوري خبري دَ داؤد بادشاه وړومبيْ او
ورستيْ دَ سموئيل هغي غيب ليدونکي دَ خبرونو په کتابونو
کښ ليکلي شوِي دِي او دَ ناثان هغي نبي په خبرونو کښ او
۳۰ دَ جاد غيب ليدونکي په خبرونو کښ ۳۰ سره له ټولي بادشاهي
دَده او دَ جبّاريْ دَده او دَ هغو وقتونو چه په ده او په
اسرائيل او په ټولو بادشاهتونو دَ زمکو تير شول *

# دویم کتاب دَ روزنامي

## اول باب

۱ او سلیمان بن داؤد په خپلي بادشاهئ تینګ شه او ۱
خداوند الله دَده ورسره وه او دي ئي بیحده لوي کړ ۲ او ۲
سلیمان ټول اسرائیل ته خبره وکړه سردارانو دَ زرګونو اودَ
سلونو او قاضیانو ته او په ټول اسرائیل کښ هر امیر ته
پدرِي سردارانو ته ۳ او سلیمان او ټول جماعت ورسره ۳
هغه لوړي ته چه په جبعون کښ وه لاړل ځکه چه هلته
خیمهِ اجتماع د الله چه موسیٰ بنده دَ خداوند په بیابان کښ جوړه
کړي وَه ۴ لیکن صندوق دَ الله داؤد له قریت یعاریم هغه ۴
ځاي ته وخیژاوه چه داؤد ورله تیار کړي وه ځکه چه هغه
لره په اورشلیم کښ خیمه ودرولي وه ۵ او مذبح دَ زیړو چه ۵
بضلئیل بن اوري بن حور جوړه کړي وه دَ خداوند دَ
مسکن دَ وړاندِ ئي ینبي وه او سلیمان او هغه جماعت
هلته کښ دُعا وغوښته ۶ او سلیمان هلته کښ دَ زیړو په ۶
مذبح چه دَ جماعت په خیمي کښ وه وخوت او په هغي
باندِ ئي زر سیزونکي قربانئ وخیژولي
۷ په هغي شپي کښ سلیمان ته الله ورښکاره شه ۷
ورته ئي وویل چه وغواړه چه زه څه تاته درکړم ۸ نو سلیمان ۸
الله ته وویل چه تا ځما له پلار داؤد سره لویه مهرباني
کړي ده او تا زه دَده په ځاي بادشاه کړي یم ۹ نو اوس اي ۹
خداوند الله ستا هغه کلام چه ځما له پلار داؤد سره وه
په امن ثابت دِ کړي شي ځکه چه تا زه په ډیرو خلقو لکه

١٠ شکي دَ زمکي بادشاه کړي يم ١٠ نو اوس ما ته حکمت او پوهه
راکړه چه دَدي خلقو دَ وړاندِ وزم ننه وزم څکه څوک
١١ توانيږي چه په دي لوي اُمّت ستا حکومت وکړي ١١ نو الله
سليمان ته ووِيل دَ دي دَپاره چه ستا په زړه کښ دا وه
او تا دَدولت او دَ مالونو او دَ عزّت سوال ونه کړ او نه دِ
دَ خپلو دُښمنانو دَ ځان او نه دِ دَ ډيرو ورځو سوال
کړي دي بلکه دَ ځان دَپاره دِ دَ حکمت او دَ پوهي سوال کړي
دي چه ته ځما په اُمّت چه ما پرِ بادشاه کړي يي بادشاهِي وکړي
١٢ ١٢ زه به تا ته حکمت او پوهه درکړم او تا ته به دولت او
کته او عزّت درکړم چه دَدغو په شان نه هغو بادشاهانو لره
چه له تا نه وړاندِ وُو او نه به دَدغو په شان هغو لره وِي
١٣ چه پس له تاوِي ١٣ نو سليمان له هغي لوړي چه په جبعون
کښ وه اورشليم ته دَ جماعت له خيمي نه ورغي او په اسرائيل
ئي بادشاهِي کوله
١٤ ١٤ او سليمان گاډِي او آسونو جمع کړل او دَده يو زر
څلور سوه گاډي وُو او دولس زره سواره او هغه ده دَ گاډيو
په ښهرونو کښ کيښودل او دَ بادشاه سره په اورشليم کښ وُو
١٥ ١٥ او بادشاه په اورشليم کښ سپين او سره زر دَ کاڼو په شان
ولګول او دَ لمنځي لرگي ئي لکه انځير چه په کوز ميدان کښ دِيئ په
١٦ کثرت سره ولګول ١٦ او دَ سليمان دَ آسونو وتنه له مصره وه
١٧ او دَ بادشاه دَ تاجرانو ټولي به پرک پرک په بيعه اخستل ١٧ او
هغوي به ختل او له مصره به ئي يو گاډي په شپږ سوه دَ
سپينو زرو راوسته او يو آس به يو سل پنځوس او په دي
شان سره دَ حتيانو دَ ټولو بادشاهانو دَپاره او دَ آرام دَ
بادشاهانو دَپاره به ئي دَ هغو له لاسه راويستل ❊

# دویم باب

آ او سلیمان امر وکړ چه دَ یهوه په نُوم یو کور بنا کړي ۱
او دَ خپلي بادشاهئ دَپاره یو کور ۲ او سلیمان اویا زره ۲
سړي باروړونکي او اتیا زره سړي پریکونکي په غره کښ مقرر
کړل او په هغو بانْدِ دري زره شپږ سوه ناظران وُو ۳ او ۳
سلیمان حورام بادشاه دَ صور ته واستول و ئي وېل لکه
چه تا څما له پلار داؤد سره وکړل او دَ لمنځي لرګي دِ ور
واستول چه دَ ځان دَپاره کور بنا کړي چه په کښ قرار کښیني
۴ او ګوره چه زه دَ یهوه څما دَ الله و نُوم ته یو بیت بنا ۴
کوم چه دَده تقدیس وکړم چه دده دَ وړاندِ خوشبویه بخور
وسیځم او دَ همیشه دَ نذر دَ ډوډیو دَپاره او دَپاره دَ
سیزونکیو قربانیو صباح او بیګاه او دَ سبّتونو دَ میاشتو
دَپاره او دَ خداوند څموږ دَ الله دَ عیدونو دَپاره چه دا به
په اسرائیل بانْدِ تر ابدَ پوري وِي ۵ او هغه بیت چه زه ئي ۵
بنا کوم لوي دي ځکه چه څموږ الله له ټولو خدایانو لوي دَي
۶ او څوک توانیږي چه دَده دَپاره بیت بنا کړي چه آسمانونه او ۶
آسمان دَ اسمانو ئي ځایولي نه شِي او زه څوک یم چه دَده دَپاره
بیت بنا کړم مګر دَپاره دَ سیزلو دَده دَ وړاندِ ۷ نو اوس ما ته ۷
یو دانا سړي راواستوه چه په کار دَ سرو زرو او دَ سپینو
زرو او دَ زیړو او دَ اوسپني او دَ ارغواني او دَ قرمزو او دَ
آسماني او چه په نقش کولو کښ نقاش پوهان وِي سره له
هغو دانایانو چه ما څخه دِي په یهوداه او په اورشلیم کښ
چه څما پلار داؤد مقرّر کړل ۸ او ما ته دَ لمنځو او دَ ۸
نښتړو او دَ چندڼ لرګي له لبنانَ راواستاوه ځکه چه زه

پوهيږم چه ستا مريونه دَ لبنان دَ لرګو په پرېکولو کښ پوهان
۹ دِي او ګوره ځما مريونه ستا له مريونو سره دِي ۹ او دوي دِ ځما
دَپاره ډېر ډېر لرګي تيار کړِي ځکه هغه بيت چه زه ئي بنا کوم عظيم
۱۰ او عجيبه دي ۱۰ او ګوره چه زه به تبر وهونکو ته يعني دَ لرګو
پرېکونکيو ته شل زره کړّه دَ مات شوه غنمو ستا نوکرانو ته
ورکړم او شل زره کړّه اوربشي او شل زره بتّ شراب او شل زره
۱۱ بتّه تيل ۱۱ نو حورام بادشاه دَ صور سليمان ته په خط کښ ويل
په دي چه خداوند په خپل اُمّت محبّت کوِي نو ته ئي پرِ بادشاه
۱۲ کړي يي ۱۲ او حورام وويل چه مبارک دَي يهوه الله دَ اسرائيل چه
آسمان او زمکه ئي جوړ کړل چه داؤد بادشاه ته ئي دانا او هوشدار
او فهمدار پوهان زوي ورکړِي دَي چه هغه يهوه ته يو بيت
۱۳ بنا کړِي او دَ خپلي بادشاهئِ دَپاره يو کور ۱۳ او اوس زه حورام
۱۴ ابي يو دانا سړَي او فهمدار پوهان دراستوم ۱۴ دَ دآن له لونړو
دَ يوي ښځي زوي او پلار ئي دَ صور سړي وه چه دَ زرو او دَ
سپينو زرو او دَ زيړو او دَ اوسپني او دَ کاڼيو او دَ لرګي په کار
کښ او په ارغواني او په آسماني او په کتاني او په قرمزي کښ
پوهان دي او دَ نقشو دَپاره نقاش او دَ حساب کولو دَپاره چه
ټول حساب ورلره ورکړي شي ستا له دانايانو سره او له دانايانو
۱۵ ځما دَ خاوند داؤد ستا پلار سره دَي ۱۵ او اوس هغه غنم او
اوربشي او تيل او شراب چه ځما خاوند امر وکړِي خپلو خپلو
۱۶ مريونو ته دِ ئي واستوِي ۱۶ او مونږ به له لبنان لرګي پرېکړو ستا
دَ ټول احتياج په موافق او دَ هغو به جاله وتړو په درياب به
۱۷ ئي يافي ته دروړو او ته به ئي اورشليم ته وخېژوي ۱۷ او سليمان
هغه ټول بيګانه کسان چه دَ اسرائيل په زمکي کښ وُو وشميرل
پس له هغه شماره چه دَده پلار داؤد شمار کړِي وُو او هغوي

یو سل او دري پنځوس زره او شپږ سوه مُندِلي شوِي وُو
۱۸ ۱۸ او له هغه ئې اويا زره بارونِكي او اتيا زره پريكونِكي په غره
باندِ مقرّر كړل او دري زره او شپږ سوه ناظران چه له خلقو كار اخلي ‡

# دريم باب

۱ آ او سليمان دَ بيت يهوه په بنا كولو شروع وكړه په اورشليم
كښ دَ موریاه په غره كښ چرته چه داوُد دَده پلار ته ښكاره
شوي وه هلته چه داوُد دَ اُرنان هغه يبوسي دَ درمند په ځاي
۲ كښ مكان تيار كړ ۲ او ده دَ خپلي بادشاهيَ دَ څلورم كال دَ
۳ دويمي مياشتي په دويم تاريخ په بنا كولو شروع وكړه ۳ او دا
هغه بنيادونه چه سليمان دَ بيت الله دَ بنا كولو دَپاره كيښودل
اوږدوالي ئې شپيته هاتي دَ وړاندنئ اندازه په موافق او پلنوالي ئې شل
۴ هاتي ۴ او دَ وړاندِني دهليز اوږدوالي دَ بيت دَ پلن والي په
مخامخ شل هاتي او هسكوالي ئې يو سل شل او دننه طرف ئې
۵ په خالصو سرو زرو جړاوُ كړي وه ۵ او ده لوي بيت دَ سروي په
تركو پټ كړ او په خالصو زرو ئې جړاوُ كړ او په هغه باندِ ئې
۶ كجوري او زنځيرونه ولګول ۶ او ده هغه بيت په قيمتي كاڼو دَ
۷ ښائست دَپاره جړاوُ كړ او سره زر دَ فروائيم سره زر وُو ۷ او
ده هغه بيت دَ هغه بيښونه او استاني او ديوالونه ئې او
دروازي ئې په سرو زرو پټي كړي او په ديوالونو ئې كروبيم نقش
۸ كړل ۸ او ده بيت القدوس الاقداس جوړ كړ اوږدوالي ئې دَ كور
دَ پلنوالي په موافق شل هاتي وه او پلن والي ئې شل هاتي
او هغه ئې په خالصو سرو زرو چه شپږ سوه قنطاره وُو
۹ جړاوُ كړ ۹ او دَ هغه ميخونه تول پنځوس مثقاله دَ سرو زرو
۱۰ وُو او پاسنئ ئې په سرو زرو پټ كړ ۱۰ او دَ قدس الاقداس

په بيت کښې ئې کروبيم جوړ کړل دَ کنودلو په کار سره او په سرو
۱۱ زرو ئې جړاؤ کړل ۱۱ او پرونه دَ کروبيانو اوږدوالَي ئې شل هاتي
يو پر پنځه هاتي دَ بيت په ديوال لګيده او هغه بل پر پنځه
۱۲ هاتي دَ هغه بل کروبي وپر ته لګيده ۱۲ او پر دَ بل کروبي پنځه
هاتي دَ هغه بيت په ديوال لګيده او بل پر پنځه هاتي دَ هغه
۱۳ بل کروبي په پرونو پيوند شوي وه ۱۳ او دَ دغو دوو کروبيانو پرونه
غوړيدلي شل هاتي او دوي په خپلو پښو ولاړ وُو او مخونه
۱۴ ئې دَ بيت په لوري ۱۴ او ده دَ هغه پرده له آسماني او له ارغواني
او له قرمزي او له کتاني جوړه کړه او په هغې ئې کروبيان پورته
۱۵ کړل ۱۵ او ده دَ بيت دَ وړاندې دوه ستني جوړي کړلي او اوږدوالي
ئې پنځه ديرش هاتي او هغه دوه تاجونه چه دَ هري يوي په
۱۶ سر وُو پنځه هاتي وُو ۱۶ او ده زنځيرونه په کلام خاني جوړ
کړل او هغه ئې دَ ستنيو په سر ولګول او ده سل آناره
۱۷ جوړ کړل او هغه ئې په زنځيرونو کښې ولګول ۱۷ او هغه ستني
ئې دَ هيکل دَ وړاندې ودرولي يوه په ښي لوري او بله په کيڼ
لوري او دَ ښي دَ لوري نُوم ئې ياکين او دَ کيڼ دَ لوري نُوم ئې
بوعز وباله ❊

## څلورم باب

۱ او ده دَ زيړو مذبح جوړه کړه چه اوږدوالَي ئې شل هاتي او
۲ پلنوالي ئې شل هاتي او اوچتوالي ئې لس هاتي وه ۲ او يو وِيلي
کړي شوي درياب ئې جوړ کړ له يوي شونډي تر بلي شونډي پوري
لس هاتي او هغه ګِرداګِرد غونډ وه او اوچتوالي ئې پنځه
۳ هاتي او ديرش هاتي مزي دَ هغه په چاپيره ګرزيده ۳ او په
ګِرداګِرد دَ هغه دَ لاندِ دَ غوايانو صورتونه وُو په يوي هاتي
کښې لس چه دَ هغه په ګِرداګِرد ګرزيدلي وُو دوه صفونه دَ

خښکو چه دَده په تويولو سره تيّي شوي وو ۳ هغه په دولسو ۴
غوايانو ولاړ وو دري دَ قطب په لوري مخامخ وو او دري
دَ نمر پريوانه په لوري مخامخ وو او دري دَ سهيل په لوري
مخامخ وو او دری دَ نمرخاته په لوري مخامخ وو او هغه درياب
په هغو دَپاسه وه او دَده ټول لکه لمي په دننه لوري وُو ۵ او ۵
غټوالي ئې يو ځپک وه او دَ هغه سنډي لکه کاريګري دَ کاسي
دَ شونډي دَ سوسن دَ فراخو کلونو سره او دري زره بټ ئې
نيول او ځائيدل ۶ او ده لس تالاوه جوړ کړل او پنځه ئې په ۶
(ښي لوري)
کيڼ لوري ولکول چه په کښ لاڼبي او دوي به په هغو کښ (او پنځه دې)
هغه څيزونه چه دَ سيزونکي قرباني وُو په ده کښ به ئې ډوب
کړل او هغه درياب دَ کوهنانو دَ لنبلو دَپاره وه ۷ او ده لس ۷
شمعدانونه دَ سرو زرو دَ هغو په رسم سره جوړ کړل او
هغه ئې په هيکل کښ پنځه په ښي لوري او پنځه په کيڼ لوري
ولکول ۸ او لس خوانچي ئې جوړي کړلي او هغه ئې په هيکل ۸
کښ پنځه په ښي لوري او پنځه په کيڼ لوري کيښودلي او
هغه سل کټوري دَ سرو زرو جوړ کړل ۹ او ده دَ کوهينانو ۹
حصار او لوي غولي جوړ کړ او دَ غولي دروازي او هغه
دروازي ئې په زيړو جراؤ کړي ۱۰ او ده درياب دَ ښي اوړي ۱۰
و مشرق خوا ته دَ سهيل له لوري ولکوه ۱۱ او حورام کټوئ ۱۱
او يومونه او کټوري جوړ کړل او حورام له هغي کاريګرئ کولو
چه دَ سليمان بادشاه دَپاره ئې په بيت الله کښ کوله وزګار
شه ۱۲ دوه ستني او هغه کولئ او هغه کوتري چه دَ هغو ۱۲
دوو ستنيو په سر وي او هغه دوه شبکي چه دَ هغو دوو
کوليو دَ پټ کولو دَپاره وي چه دَ ستني په سر وي ۱۳ او ۱۳
هغو دوو شبکيو لره څلور سوه اناره دوه قنطاره دَ انارو دَ

هرې يوې شبکې دَپاره چه دَ هغو دوو کلونو دَ کوترو چه
۱۴ په ستنې وُو پټ کړي ۱۴ او ده هغه کرسئ جوړې کړې او په
۱۵ هغو کرسيو باندِ ئې حوضونه جوړ کړل ۱۵ او هغه يو درياب
۱۶ او دولس غوايان تر هغه دَ لاندِ ۱۶ او هغه کټوې او هغه يومونه
او نښکونه او هغه ټول کالي چه حورام ابي سليمان بادشاه
۱۷ لره دَ بيت يهوه دَپاره جوړ کړل دَ صيقل کړې شوېو زيړو ۱۷ او
هغه بادشاه دَ اردن په مينځ کښِ په متهينه زمکه کښِ دَ
۱۸ سکوت او دَ صَريداه په مينځ کښِ تسوي کړل ۱۸ او سليمان
دا ټول کالي بيحده ډير جوړ کړل چه دَ هغو زيړو وزن هيڅ لټولې
۱۹ نه وه ۱۹ او سليمان دَ بيت الله دَپاره ټول کالي جوړ کړل او دَ
سرو زرو مذبح او هغه ميزونه چه دَ نذرونو ډوډې پرِ باندِ
۲۰ کيږدې ۲۰ او هغه شمعدانونه او ډيوې ئې چه دَ کلام خانې دَ وړاندِ
۲۱ دَ رسم په موافق بليږې دَ خالصو سرو زرو ۲۱ او هغه فراخه
کلونه او ډيوټونه او نُوسې دَ سرو زرو وُو او هغه کامل سره
۲۲ زر وُو ۲۲ او هغه کاګيرونه او هغه کټورې او هغه څمڅئ او
هغه مجمرونه دَ خالصو زرو وُو او دَ مدخل دَ بيت دَ اندروني
دروازې دَ قدس الاقداس او دروازې دَ بيت دَ هيکل دَ سرو زرو وې *

# پنځم باب

۱ او هغه ټوله کاريګرې چه سليمان دَ بيت يهوه دَپاره کاوله
سلامت شوه او سليمان دَ خپل پلار مقدّس څيزونه هغه
ته راننه ويستل او سپين زر او سره زر او ټول کالي ئې دَ بيت
۲ الله په خزانې کښِ کيښودل ۲ نو هغه وقت سليمان ټول
سپين ږيري دَ اسرائيل او ټول سرداران دَ فرقو اميران دَ پلرونو
دَ بني اسرائيل اورشليم ته راجمع کړل چه دَ خداوند دَ عهد

٣ صندوق دَ داؤد له ښهره چه صيحون دَي راوخيژوِي ٣ نو
بادشاه ته ټول سړِي دَ اسرائيل په هغه عيد کښ چه په
٤ اوومي مياشتي کښ وه جمع شول ٤ او ټول سپين ږيري دَ
٥ اسرائيل ورغلل او لاويانو هغه صندوق پورته کړه ٥ او هغه
صندوق ئي وخيژاوه او دوي هغه صندوق او دَ جماعت خيمه
سره له ټولو مقدّسو کاليو چه په خيمي کښ وُو کوهينانو او
٦ لاويانو وخيژول ٦ او سليمان بادشاه او ټول جماعت دَ اسرائيل
چه ده ته ورجمع شوِي وُو دَ صندوق دَ وړاندِ کډوري او
غوايان ذبح کونکي شول چه دَ کثرت په سبب په شمار او په
٧ حساب کښ نه راتلل ٧ او کوهينانو دَ خداوند دَ عهد صندوق
خپل ځاي ته ورننه يوست دَ بيت وکلام خاني ته په قدس الاقداس
٨ کښ دَ کروبيانو تر وزرو دَ لاندِ ٨ ځکه چه هغه کروبيانو خپل
وزر دَ صندوق په ځاي غوړولِي وُو او هغه کروبيانو په
٩ صندوق او دَ هغه په بازوګانو له پاسه سيوري کاوه ٩ او دوي
هغه بازوګان وځکول او دَ هغه بازوګانو سرونه له صندوق
نه دَ کلام خاني دَ وړاندِ ښکاره شول او له هغه دَ باندي
ښکاره نه شول او هغه تر نن ورځي پوري هلته کښ دِي
١٠ ١٠ او په هغه صندوق کښ بيله هغو دوو لوحو نور هيڅ نه وُو چه
موسیٰ په حوريب کښ کيښودلي وي هغه وقت چه خداوند دَ
١١ بني اسرائيل سره عهد وتاړه چه دوي له مصرَ ووتل ١١ او داسي
وَشول هرکله چه کوهينان له مقدّسه ووتل (ځکه چه ټول
کوهينان چه حاضر وُو خپل ځانونه ئي پاک کړل) نه ئي په حاقي
١٢ سره ساتنه وکړه ١٢ او هغه لاويان چه سندري به ئي ويلي
ټول واړه دَ آساف او دَ هيمان او دَ يدوثون او دَ دوي زامنو
او دَ دوي ورونړو کتان آغوستِي وُو په ژنګولو او په ربابونو

او په ستارونو سره به دَ مذبح دَ نمرخاته په لوري ولاړ وُو او
له دوي سره به له کوهینانو یو سل او شل وُو چه توريَ
١٣ به يې غږولي ١٣ او داسي وشوه چه توريې غږونکيو او سندري
ويونکو به یو آواز پورته کاوه لکه يو آواز دَ خداوند دَ ثنا
اودَده دَ حمد دَپاره او چه دوي به آواز په توريو او په ژنګولو
او دَ سندرو په سازونو پورته کړ او خداوند ته به يې ثنا کوله
څکه چه دَيَ نیک دي او مهرباني دَده تر ابدَ پوري ده نو بیت
١٤ به یعني بیتِ يهوه به له اوريځي ډک شه ١٤ او کاهنان نه توانیدل
چه دَ خدمت دَپاره ودريږي دَ اوريځي په سبب څکه چه دَ
خداوند تمجیــــد بیت الله ډک کړي وه ✣

# شپږم باب

١ آ هغه وقت سلیمان ووېل چه خداوند ویلي دِي چه زه به په
٢ ګڼړو تورو تیارو اوريځو کښ اوسم ٢ او ما ستا دَ استوګني
دَپاره يو بیت بنا کړي دَي يو مکان ستا دَ قرارګاه دَپاره تر
٣ ابدَ پوري ٣ او بادشاه خپل مخ وګرزاوه او ټول جماعت دَ
اسرائیل ته يې برکت ورکړ او ټول جماعت دَ اسرائیل ولاړ وه
٤ ٤ او ده ووېل چه یهوه الله دَ اسرائیل مبارک دَي چه ده
په خپلي خولي سره څما پلار داؤد ته کلام وکړ او هغه يې په
٥ خپل لاس پوره کړ ویل يې ٥ چه له هغي ورځي چه ما خپل
اُمّت دَ مصر له زمکي راویوست هیڅ ښهر مِ دَ ټولو فرقو دَ
اسرائیل دَ بیت دَ بِنا کولو دَپاره پسند نه کړ چه څما نُوم
هلته کښ وِي او نه مِ هغه هیڅ سړيَ پسند کړ چه څما په
٦ اُمّت. اسرائیل امیر وِي ٦ مګر ما اورشلیم پسند کړ چه څما نُوم
هلته وِي او ما داؤد پسند کړ چه څما په اُمّت اسرائیل بانډِ

وِي ۷ او ځما دَ پلار داؤد په زړه کښې وه چه يهوه الله دَ ۷
اسرائيل دَ نُوم دَپاره بيت بنا کړِي ۸ نو خداوند ځما پلار داؤد ۸
ته ووئيل دَدي دَپاره چه ستا په زړه کښې وه چه ته به ځما
په نُوم يو بيت بنا کړِي نو چه په زړه کښې دِ وُو نو ښه دِ وکړل
۹ مګر ته به پخپله هغه بيت بنا نه کړِي بلکه ستا زوي چه ۹
ستا له پښت نه راووزِي هم هغه به ځما دَ نُوم دپاره هغه
بيت بنا کړِي ۱۰ نو خداوند هغه کلام خپل چه خبري ئي پرِ وکړي پوره ۱۰
کړِ او زه دَ خپل پلار داؤد په ځاي کښې ودريدم او لکه چه
خداوند کلام وکړِ دَ اسرائيل په تخت کښيناستم او دَ خداوند
الله دَ اسرائيل نُوم لره مِ کور جوړ کړِ ۱۱ او هلته کښې مِ هغه ۱۱
صندوق کيښود چه په کښې دَ خداوند هغه عهد دَي چه له
بنِي اسرائيل سره ئي وکړِ
۱۲ او دي دَ خداوند دَ مذبح دَ وړاندِ دَ ټول جماعت دَ ۱۲
اسرائيل په مخامخ ودريده او خپل ورغوي ئي وغوړول ۱۳ ځکه ۱۳
چه سليمان دَ زيړو يو مجمر جوړ کړِ او هغه ئي دَ غولي په منځ
کښې ولګاوه او دَ هغه اوږدوالَي پنځه هاتې او پلنوالي ئي پنځه
هاتې او اوچتوالي ئي دري هاتې وه او په هغه ودريد او خپل
زنګونو ئي دَ ټول جماعت دَ اسرائيل دَ وړاندِ ولګول او خپل
ورغوي ئي دَ آسمان په لورِي وغوړول ۱۴ او وئي ويل اي يهوه ۱۴
الله دَ اسرائيل ستا په شان الله په آسمانونو او په زمکې
کښې نشته ساتونکَي دَ وعدي او دَ رحمت ستا هغو بندګانو
ته چه ستا دَ وړاندِ په خپلو ټولو زړونو سره تلونکِي دِي ۱۵ تا ۱۵
چه خپل بنده داؤد پلار ځما لره هغه څه چه خبره دِ وکړه
وساتل تا په خپلي خُلي سره خبره وکړه او په خپل لاس
دِ پوره کړه لکه نن ورځ ۱۶ او اوس اي يهوه الله دَ اسرائيل ۱۶

هغه وعده وساته چه تا له خپل بنده داؤد پلار ځما سره په
دي ويلو کړي وه چه ستا دپاره به ځما دَ وړاندِ هغه سړي
چه دَ اسرائيل په تخت کښيني ورک نه شِي تش که ستا
ځامن خپلي لاري وساتِي چه ځما په تورات تلل کوِي لکه چه
۱۷ ته ځما دَ وړاندِ لاړلي ۱۷ او اوس اي يهوه الله دَ اسرائيل
هغه کلام ستا چه خپل بنده داؤد ته دِ خبره وکړه آمين
۱۸ دِ وِي ۱۸ ليکن الله به په حقيقت سره له انسان سره په زمکي
باندِ واوسِي څه؟ گوره آسمانونه او آسمان دَ آسمانونو ستا
۱۹ ځاي نه لرِي نو لا څومره کم دا کور چه ما بنا کړي دَي ۱۹ نو
ته دَ خپل بنده دُعا ته او زاريو ته متوجّه شه اي يهوه
ځما الله چه هغه نعرِي او دُعا چه ستا بنده ئي ستا دَ وړاندِ
۲۰ کوِي واوره ۲۰ ستا سترگي دِ ورځ او شپه په دي بيت پرانتلي
وِي په هغه مکان چه تا وويل چه زه به خپل نوم په هغه
کيږدم چه ته هغه دُعا چه ستا بنده ئي په دي مکان کښِ
۲۱ کوِي واوره ۲۱ او دَ خپل بنده او دَ خپل اُمّت اسرائيل زارِي
چه دَ دي مکان وخواه ته ئي دُعا کوِي وا ئي وره او ته دَ
خپلي استوگني له ځايه له آسمانه واوره او چه واورِي نو
۲۲ صلح وکړه ۲۲ که يو سړي دَ خپل همسايه خطا وکړِي او په هغه
باندِ قسم کيښودلي شِي چه هغه دِ قسم وکړِي او هغه قسم
۲۳ ستا دَ مذبح دَ وړاندِ په دي بيت کښِ راشِي ۲۳ نو ته عمل
وکړه او له آسمانه واوره اوکار وکړه او دَ خپلو بندگانو
انصاف وکړه چه گناهگار را وگرزوِي چه دَ هغه لار دَ هغه
په سر ورکيښودلي شِي او چه صادق وگڼلي شِي
۲۴ چه هغه ته دَ هغه دَ صداقت په موافق ورکړي شِي ۲۴ او
که ستا اُمّت اسرائيل دَ دښمن دَ وړاندِ شکست وخورِي څکه

چه دوي ستا خطا کړي ده بیا را وجاروزي او ستا په نوم
اقرار وکړي او دُعا وکړي او ستا دَ وړاندِ دَ دي بیت په لوړي
زارِي وکړي ۲۵ نو ته ئي له آسمانه واوره او دَ خپل اُمّت اسرائیل ۲۵
خطا وبخښه او دې هغې زمکې ته چه دوي ته او دَ دوي
پلرونو ته دِ ورکړي دَه را وئي ګرزوه ۲۶ او چه آسمان بند ۲۶
شي او باران نه وِي ځکه چه دوي ستا خطا وکړه او دَ دي
مکان په لوړي دُعا وکړي او له خپلو خطاؤ را وجاروزي
هَرکله چه ته هغوي په تنګسیا راوړي ۲۷ نو ته له آسمانه ۲۷
واوره او دَ خپلو بندګانو او دَ خپل اُمّت اسرائیل خطاوي
وبخښه او دوي چه هغه نیکه لار چه دوي په کښ درومي زده
کړي او په هغې زمکې باران وکړه چه تا خپل اُمّت ته په میراث
ورکړي دَه ۲۸ چه په زمکې کښ لوږه شي یا وبا شي او بادِ سموم ۲۸
او زیړي یا بیاباني ملخ او نغړدونکي ملخ وِي چه دَ دوي دُښمن
دوي په کلیو کښ ګیر کړي په هرې بلا او په هر رنځ کښ
چه وِي ۲۹ نو هره دُعا او هره زارِي چه له هره سړیه وِي ۲۹
یا ستا له ټول اُمّتَ اسرائیله چه هر یو خپله بلا او
خپل درد و پیژني او خپل ورغوي دَ دي بیت په لوړي وغوړوي
۳۰ نو ته له آسمانه دَ خپلي استوګني له مکانه واوره او ۳۰
صلح وکړه او هر سړي ته دَ هغو دَ ټولو لارو په موافق ورکړه
لکه چه ته دَ هغه زړه پیژنې ځکه چه ته یواځې دَ آدمیانو
زړونه پیژنې ۳۱ چه دوي له تا نه ووېرېږي او ستا په لارو ۳۱
کښ لاړ شي ټولې ورځې چه دوي په کښ ژوندون کوي دَ هغې
زمکې په مخ چه تا ځمونږ پلرونو ته ورکړي دَه ۳۲ او په دې ۳۲
شان هغه بیګانه چه ستا له اُمّته اسرائیله نه وِي او
له لرې زمکې ستا دَ لوي نوم دَپاره او ستا دَ قوي لاس

او ستا په نوم اقرار وکړي

او ستا د اوږد کړې شوې بازو دَپاره راغلي وي نو هرکله چه
٣٣ هغه راشي او په دې بيت کښ دُعا وکړي ٣٣ نو ته له
آسمانه دَ خپلې استوګني له مقامه واوره او دَ هر هغه
څه په موافق چه هغه بېګانه ئې له تا وغواړي وکړه تا چه
ټول قومونه دَ زمکې ستا نُوم وپېژني او ستا دَ اُمّت
اِسرائيل په شان له تا نه و وېرېږي او پوه شي چه ستا نُوم
٣۴ په دې بيت چه ما بِنا کړې دې بللې دَې ٣۴ چه ستا اُمّت
دَ خپلو دښمنانو دَ جنګ دَپاره په هغې لارې کښ ووزي
چه ته ئې په کښ واستوې او دَدې ښهر په لوري چه تا
غوره کړې دَې چه ستا نُوم په کښ وي او دَدې بيت په
٣۵ لوري چه ما ستا نُوم ته بِنا کړې دَې دُعا وکړي ٣۵ نو ته
له آسمانه دَدوی دُعا او زارۍ واوره او دَدوی عدالت
٣۶ وکړه ٣۶ او هرکله چه دوی ستا خطا وکړي (ځکه چه هيڅ
آدمزاد نشته چه خطا نه کوي) او ته په هغو خپه شې
او دوی دَ دُښمنانو وړاندې ته ورکړې او هغوی دوی کومې
زمکې ته چه لرې يا نزدې وي په بند بنديان بوزي -
٣٧ ٣٧ نو که دوی په هغې زمکې کښ چه په بند بيولي شوي
دي خپل زړونه وګرزوي او وجاروزي او تا ته دَ خپلې
بنديوانئ په زمکې کښ زارۍ وکړي ووايي چه موږ خطا
٣٨ کړې دَه موږ کاږه تللي يُو او شرارت مو کړې دَې ٣٨ او تا ته
په ټولو زړونو خپلو سره او په خپلو ټولو ځانونو سره
وجاروزي دَ خپلې بنديوانئ په زمکه کښ چه دوی په بند
ورغلي دِي او دُعا وکړي دَ هغې خپلې زمکې په لوري چه
تا دَدوی پلرونو ته ورکړې دَه او دَ هغه ښهر په لوري چه
تا غوره کړې دَې او دَ هغه بيت په لوري چه ما ستا

۳۹ نوم نه بنا کړي دي ۳۹ نو ته له هغو آسمانونو دَ خپلي
استوګني له مکانه دَ دوي دُعا او زارِي واوره او دَ دوي
عدالت وکړه او دَ خپل اُمّت سره صلح وکړه چه ستا دَ وړاند
۴۰ ئِ خطا کړي دَه و ئِ بخښه ۴۰ نو اوس اي خُما اللهَ ستا
سترګي دِ پرانتلي وِي او ستا غوږونه دِ ونغوږِي دَدي مکان
۴۱ دُعا ۴۱ او اوس اي يهوه الله پورته شه دَ خپل راحت
په لوري او ستا دَ مجد صندوق اي يهوه الله ستا
کوهينانَ دِ خلاصون واغوندِي او ستا تقوىٰ داران دِ په
۴۲ نيکئِ سره خوشحالِي کوِي ۴۲ اي يهوه الله ته دَ خپل مسيح
مخ مه ګرزوه دَ خپل بنده داؤد تقوىٰ په ياد کړه ❊

# اوم باب

۱ ۱ او چه سليمان له دُعا نه وزګار شه نو له آسمانه اور
راکوز شه او دَ سيزلو قربانِي او ذبيحي ئِ وخوړِي او دَ
۲ خداوند جلال بيت ډک کړ ۲ او کوهينان نه توانيدل
چه بيت يهوه ته ننوزِي ځکه چه دَ خداوند جلال بيت دَ
۳ يهوه ډک کړ ۳ او ټولو بني اسرائيلو ورته کتل چه اور
راکوزيده او دَ خداوند جلال په هغه بيت وه او دوي په
خپلو مخونو زمکي ته ټيټ شول په هغه فرش دَ سنګ
باندِ او سجده ئِ وکړه او دَ يهوه حمد ئِ وکړ ځکه چه دَيَ
۴ نيک دَي او مهربانِي ئِ تر ابده پوري دَه ۴ نو بادشاه
۵ او ټول اُمّت دَ يهوه دَ وړاندِ ذبيحي ذبح کړلي ۵ او سليمان
بادشاه ذبيحي ذبح کړلي له غوايانو دوه ويشت زره او له
ميږو يو سل او شل زره او بادشاه او ټول اُمّت بيت
۶ الله خاص کړ ۶ او کوهينان په خپلي ساتني ولاړ وُو او

لاویانو دَ خداوند سرود له کالیو سره چه داؤد بادشاه
دَ خداوند دَ حمد دَپاره جوړ کړي وُو څکه چه دَده مهرباني
تر ابدَ پوري ده په ثنا دَ داؤد دَدوي په لاسونو سره او
کوهینانو به دَ هغو دَ وړاندِ توري غربولي او ټول اسرائیل
۷ به ولاړ وُو ۷ او سلیمان دَ هغه غولي منځ چه دَ بیت یهوه
دَ وړاندِ وه مقدس کړ څکه چه ده هلته کښ دَ سیزلو قرباني
او دَ سلامتيُ دَ ذبحو وازګي نزدي کړلي ولي چه هغه مذبح
دَ زیړو چه سلیمان جوړه کړي وه قابله نه وه چه دَ سیزلو
۸ قربانيِ او هدیِ او وازګي په کښ ځاي شِي ۸ او په دغه وقت
کښ سلیمان اوه ورځي عید کاوه او ټول اسرائیل ورسره
یو بجده لوي ټولي دَ حمات له ننه وتني دَ مصر تر رووده
۹ پوري ۹ او دوي په اتمي ورځي کښ جمع شول څکه چه دوي
اووه ورځي دَ مذبح دَ خاص کولو دَپاره وکړي او اوه ورځي
۱۰ دَ عید دَپاره ۱۰ او په درویشتمه ورځ کښ دَ اوومي میاشتي ئي
هغه اُمّت خپلو خیمو ته خوشحالي کونکي او خوشدله رخصت
کړ دَ هغي نیکيُ دَپاره چه خداوند له داؤد سره او له سلیمان
سره او له خپل اُمّت اسرائیل سره وکړه
۱۱ ۱۱ او سلیمان بیت یهوه او دَ بادشاه کور پوره کړل
او هر هغه څه چه دَ سلیمان په زړه کښ راغلل چه په بیت
۱۲ یهوه کښ او په خپل کور ئي وکړي کامیاب ئي کړ ۱۲ او خداوند
سلیمان ته په شپه کښ ورښکاره شه او ورته ئي وویل
چه ما ستا دُعا اوریدلي دَه او دا مکان مِ دَ ځان دَپاره دَ
۱۳ ذبحي کور غوره کړي دَي ۱۳ ګوره که زه آسمان بند کړم او
باران نه وِي او ګوره که زه ملخانو ته وفرمایم چه زمکه
۱۴ دِ وخوري او که زه په خپل اُمّت وبا واستوم ۱۴ نو که څما

اُمّت چه ځما نوم په دوي بللې شِي عاجِزي وکړِي او دُعا وکړِي
او ځما مخ ولټوِي او له خپلو شرارتونو را وګرزي نو زه
به له آسمانه واورم او دَدوي خطاوې به وبخښم او دَدوي
زمکې له به شِفا ورکړم ۱۵ اوس به ځما سترګې پرانتلې وِي ۱۵
او ځما غوږونه به نغوتلي وِي دَدې مکان ودعا ته ۱۶ او ۱۶
اوس مِې دا کور غوره کړ او مقدس مې کړ چه ځما نوم په
دغه کښې تر ابدَ پورې وِي او ځما سترګې او ځما زړه به
هلته کښې ټولې ورځې وِي ۱۷ او که ته ځما دَ وړاند لاړ شې ۱۷
لکه چه ستا پلار داؤد تلل کول او دَ هغو ټولو په موافق
وکړې چه ما پرِ درته فرمايلې دِي او ځما حکمونه او عدالتونه
وساتې ۱۸ نو زه به ستا دَ بادشاهۍ تخت قايم کړم لکه چه ۱۸
ما ستا پلار داؤد سره وعده وکړه وِ مې ويل چه تا لره به
هغه سړې پيکړي نه شِي چه په اسرائيل باندِ سلطنت
کوِي ۱۹ ليکن که تاسي وجاروزئ او ځما حقونه او فرضونه ۱۹
چه ستاسو دَ وړاندِ مې ايښې دِي ترک کړئ او لاړ شئ او
دَ نورو خدايانو عبادت وکړئ او سجده ورته وکړئ ۲۰ نو ۲۰
زه به دوي له دې زمکې چه ورکړې مې ده وکاږم او دا بيت
چه ما دَ خپل نوم دَپاره مقدّس کړې دَې له خپلې مخې به
يې وغورزوم او هغه به په ټولو قومونو کښې يو مثل
او ژبه وګرزوم ۲۱ او دا بيت چه عاليشان دَې هر يو چه ۲۱
پر تيرېږي حيران به شِي او وبه وائي چه خداوند له
دې زمکې او له دې بيت سره ولې داسې وکړل ۲۲ نو هغوي ۲۲
به ووايي دَدې دَپاره چه دوي يهوه الله دَدوي دَ پلرونو
چه دَ مصر له زمکې يې راويستل ترک کړ او نور خدايان
يې ونيول او ورته يې سجدې وکړې او دَدوي عبادت يې

وکړ دي دَپاره هغه په دوي باندِ دا ټول آفت راوستلي دئ

# اتم باب

١ ١ او دَ هغو شلو کالو په ختم کيدلو چه په کښ سليمان
٢ بيتِ يهوه او خپل کور بنا کړي وُو ٢ سليمان هغه ښهرونه
چه حورام سليمان ته ورکړي وو بيا بنا کړل او بنياسرائيل
ئي په کښ و اوسول
٣ ٣ او سليمان حامت صوبه ته لاړ شه او په هغه
٤ غالب شه ٤ او ده په بيابان کښ تدمور بنا کړ او ټول دَ
٥ انبارخاني ښهرونه چه ده په حامت کښ بنا کړل ٥ او ده
پاسنيَ بيتِحوران او کوزنئ بيتِحوران چه په ديوالونو او دروازو
٦ او په اړمونو سره مضبوط ښهرونه وُو ٦ او بعله او ټول دَ
انبارخاني ښهرونه چه دَ سليمان وُو او ټول ښهرونه دَ گاډيو
او ښهرونه دَ سوارو او ټول شوق دَ بنا کولو چه سليمان
پرِ شوق کاوه چه په اورشليم کښ او په لبنان کښ او
٧ دَده دَ ټول سلطنت په زمکه کښ وو بنا ئي کړل ٧ ليکن
هغه ټول باقي خلق له حِتيانو او له اموريانو او له فرزيانو
٨ او له حويانو او له يبوسيانو چه له اسرائيلَ نه وُو ٨ دَ
هغه له اولاد نه چه وروستو له دوي نه په زمکه کښ
باقي وُو او دوي بنياسرائيلو ورک نه کړل نو سليمان په
٩ دغو باندِ تر نن ورځي پوري بيګار ولګاوه ٩ ليکن سليمان
دَ خپل کار دَپاره له بنياسرائيلو نه مريي نه کړل ځکه چه
دوي جنګيالي ميړونه او دَده دَ سردارانو سرونه او دَده
١٠ دَ ګاډيو او دَ سوارو سرداران ١٠ او دَ سليمان بادشاه له
منصبدارانو دوه سوه پنځوس وُو چه په خلقو ئي اختيار

لاره ۱۱ او سلیمان دَ فرعون لور دَ داؤد له ښهره هغه ۱۱
کور ته چه دي لره ئې بنا کړي وه وخېژوله ځکه چه ده
وېلي وه چه ځما ښځه به دَ داؤد بادشاه دَ اسرائیل په کور
کښې ونه اوسي ځکه چه هغه ځایونه چه دَ خداوند صندوق
ننه راغلي دیَ مقدّس دي
۱۲ نو سلیمان دَ سېزلو قربانۍ یهوه ته دَ خداوند په ۱۲
مذبح چه دَ دهلیز دَ وړاندِ ئې بنا کړي وه وخېژولې ۱۳ ورځ ۱۳
په ورځي په خبري دَ سېزلو دَ قربانیو دَپاره موافق دَ حکم
دَ موسیٰ په سبتونو او په نویو میاشتو او په موسمونو کښې
دري واره په کال کښې دَ فطیرو په عید کښې او دَ هفتو په
عید کښې او دَ جُنګړو په عید کښې ۱۴ او ده دَ خپل پلار داؤد ۱۴
دَ رسم په موافق دَ کوهینانو حلقي دَ دوي په کار ودرول او
لاویان په خپلي ساتني باندِ چه دوي ورځ په ورځ دَ خبري
په شان دَ کوهینانو دَ وړاندِ ثنا او خدمت کوي او دروانان
دَ دوي دَ حلقي په موافق دروازي په دروازي باندِ ځکه چه
دَ داؤد مردِ الله فرمان داسي وه ۱۵ او دوي دَ بادشاه له ۱۵
فرمان لري نه شول چه په کوهینانو او په لاویانو باندِ په
هري خبري کښې او په خزانو کښې وُو ۱۶ او ټول کار دَ سلیمان ۱۶
تیار کړي شوي وه تر هغي ورځي پوري چه بنیاد دَ بیت یهوه
کېښنود شه او چه بیتِ یهوه سالم تمام کېده ۱۷ نو سلیمان ۱۷
عصیون جبر ته او ایلوت ته چه دَ دریاب په غاړي دَ ادوم په
زمکي کښې دي لاړ شه ۱۸ او حورام دَ خپلو نوکرانو په لاس ۱۸
بېړۍ او مریونه واقفیان دَ دریاب ده ته واستول او هغوي
دَ سلیمان له مریونو سره اوفیر ته لاړل او له هغه ځایه ئې
څلور سوه یخوس قنطاره سره زر واخستل او سلیمان بادشاه

تـه ئ راوړل ۰

# نهم باب

۱ آ او دَ سبا ملكي دَ سليمان شهرت واوريده نو دا ورغله
چه سليمان په رازونو سره وآزمايي په اورشليم كښ له
بيحده لوي لښكر سره او له اوښانو سره چه بلسان او
سره زر په كثرت سره او دَ قيمت بها كاڼيو ورورونكي وه
او دا سليمان ته ورغله او ورسره ئي دَ هغو ټولو په باب
۲ چه دَ دې په زړه كښ وُو خبري وكړي ۲ او سليمان دې ته
ټول ښكندول او له سليمان هيڅ خبره پټه نه وه چه دې
۳ ته ئي ښكنده نه كړه ۳ نو چه دَ سبا ملكي دَ سليمان حكمت
۴ وليد او هغه بيت چه ده بنا كړي وه ۴ او دَده دَ خوانچې خوراك
او دَده دَ نوكرانو ناستون او دَده دَ خدمتكارانو ودريدنه او
دَ هغو پوشاكونه او دَده ساقيان او دَ هغو پوشاكونه اوهغه
زينې چه بيت يهوه ته پرخوت نو په دې كښ روح پاتي نه شه
۵ ۵ او دې بادشاه ته ووېل چه هغه خبري چه ما په خپلې زمكې
كښ ستا دَ كارونو او ستا دَ حكمت په باب اوريدلي وې
۶ رښتيا وې ۶ او دَ دوي په خبرو مې باور نه كيده څوچه زه
راغلم او په خپلو سترګو مې وليدل او ګوره هغه « هغه
نيم ستا له ډېر حكمتَ ما ته ښكند كړي شوي نه وُو ته له
۷ هغه شهرت نه چه اوريدلي مې دې زيات يې ۷ ستا كسان
خوش دِي او خوشحال دِي ستا دغه صريونه چه ستا دَ وړاندِ
۸ هميشه ولاړ دِي او ستا حكمت اورِي ۸ خداوند ستا الله
دِ مبارك وِي چه په تا ئي خوشحالي كړي دَه چه ته ئي په خپل
تخت بادشاه كښينولي يې دَ خداوند الله ستا دَپاره څكه
چه ستا الله په اسرائيل مينه وكړه چه تر ابدَ پوري ئي

ودروِي نو ته ئې په دوي باندِ بادشاه کښېنولي يې چه ته
عدالت او صداقت په عمل راوړِي ۹ او دې بادشاه ته يو سل ۹
شل قنطاره سره زر او بيحده ډېر بلسان او قيمت‌بها کاڼِي
ورکړل او دَدغه بلسان په شان نه وه چه دَ سبا ملکې
سليمان بادشاه ته ورکړل ۱۰ او دَ حورام مريونو هم او دَ سليمان ۱۰
مريونه چه له اوفير نه سره زر راوړِي وُو وني دَ چندڼ
او قيمت‌بها کاڼِي ئې راوړل ۱۱ او بادشاه دَ چندڼ له ونو ۱۱
نه دَ بيتِ‌يهوه او دَ بادشاه دَ کور دَپاره زينې جوړې کړلې
او سِتارونه او ربابونه دَ سرود گرو دَپاره او دَدغو
په شان دَ يهوداه په زمکه کښ پخوا هيڅرې ليدلې شوِي
نه وُو ۱۲ او سليمان بادشاه دَ سبا ملکې ته دَدې له پوره ۱۲
خوشحالئ چه و ئې غوښتل زيات له هغو چه دې بادشاه ته
راوړل ورکړل نو دا وجاروتله او خپلې زمکې ته لاړه دا
او دَدې مريونه
۱۳ او دَ هغو سرو زرو وزن چه سليمان ته په يو ۱۳
کال کښ و رغلل شپږ سوه او شپږ شپيته قنطاره دَ سرو
زرو وو ۱۴ بې له هغو نه چه تاجدارانو او سوداگرو کسانو ۱۴
ورته راوړه او ټولو بادشاهانو دَ عربو او صوبه‌دارانو دَ
زمکې به سليمان ته سره زر او سپين زر راوړل ۱۵ او ۱۵
سليمان دوه سوه ډالونه دَ ټکولو شويو سرو زرو جوړ کړل
خرڅ دَ يوه ډال شپږ سوه ټکولي شوِي سره زر په يو ډال
باندِ وختل ۱۶ او درې سوه ټکولي شوِي سره زر په يو کنکل ۱۶
باندِ وختل او بادشاه هغه دَ لبنان دَ ځنګل په کور کښ
کېښوول ۱۷ او بادشاه يو لوي تخت دَ هاتي له غاښ جوړ کړه ۱۷
او په خالصو سرو زرو ئې جړاؤ کړه ۱۸ دَ هغه تخت شپږ ۱۸

زيني وي او پاي دان چه دَ سرو زرو سره هغه تخت ته
پيوست وه او دَ کښيناستلو په ځاي په دي لوري په هغه
لوري دوه لاسونه وُو او دوه زمرِي دَ لاسونو په څنگ کښ
۱۹ ولاړ وُو ۱۹ او هلته دولس زمرِي په هغو شپږو زينو بانديِ
ولاړ وُو په دي لورِي په هغه لورِي چه دَ دغو په شان
۲۰ په هيڅ بادشاهئ کښ جوړ شوِي نه وُو ۲۰ او دَ سليمان بادشاه
ټول دَ څښاک کالي لوښي د سرو زرو وو او ټول کالِي دَ
لبنان دَ ځنګل دَ سوچه سرو زرو وُو دَ سليمان په ورځو
۲۱ کښ سپين زر هيڅ څيز گڼلِي نه شول ۲۱ ځکه چه دَ بادشاه
جهازونه به ترسيس ته تلل دَ حورام له مريونو سره او
دَ ترسيس جهازونو به په هرو دريو کالونو کښ يو وار په
سرو او په سپينو زرو او دَ هاتي په غاښو او په بيزوګانو
۲۲ او په طاؤسانو بارکړِي شوِي راتلل ۲۲ نو سليمان بادشاه
په ټولو بادشاهانو دَ زمکي په دولت او په حکمت لوِي شه
۲۳ ۲۳ او دَ زمکي ټول بادشاهانو به دَ سليمان دَ مخ آرزو
کوله چه دَ هغه حکمت چه الله دَده په زړه کښ ايښي
۲۴ وه واورِي ۲۴ او هر سړِيَ به له ځپلي پيشکشئ سره ور
ته راته دَ سپينو زرو له کاليو او دَ سرو زرو له کاليو
سرهِ او له جامو او له زغرو او له بلسانو او له آسونو
۲۵ او له کچرو سره کال په کال په يو دستور ۲۵ او دَ سليمان
څلور زره اخورونه دَ آسونو او دَ گاډيو او دولس زره
سواره وُو او دغه ئې دَ گاډيو په ښهرونو کښ ولګول او
۲۶ له بادشاه سره په اورشليم کښ ۲۶ او دي په ټولو بادشاهانو
سلطان وه له دريابه دَ فلسطيانو تر زمکي پوري او دَ مصر
۲۷ ترحدونو پوري ۲۷ او بادشاه په اورشليم کښ سپين زر

لکه کانـړي کړل او لمانځي يې دَ هغو انځيرو په شان
چه په کوز میدان کښې په کثرت کښې وي ۲۸ او دَ سليمان ۲۸
دَ اسونو وتنه له مصره او له ټولو زمکو وه

۲۹ او نوري خبرې دَ سليمان چه اوّل وي او آخري ۲۹
دَ ناثان نبي په خبرونو کښې ليکلي شوي نه دي څه؟ او
دَ اخيا هغه شلوني په نبوّت کښې او په رؤيا دَ يعدو
رؤيا ليدونکي کښې دَ يارابعام بن نباط په باب ۳۰ او سليمان ۳۰
په اورشليم کښې په ټول اسرائيل څلويښت کاله بادشاهي
وکړه ۳۱ او سليمان له خپلو پلرونو سره څملاست او دې ۳۱
يې دَده دَ پلار داؤد په ښهر کښې ښخ کړ او دَده زوي
رحبعام دَده په ځاي بادشاه شـه ❊

# لسم باب

۱ او رحبعام شکیم ته لاړ شه ځکه چه ټول اسرائيل شکیم ۱
ته ورغلي چه دې بادشاه کړي ۲ او چه يارابعام بن نباط ۲
واوريدل او دغه په مصر کښې وه چه هلته دَ سليمان
بادشاه له مخ نه تښتيدلي وه نو يارابعام له مصر را
وګرزيده ۳ نو دوي ورواستاوه او را وې باله او يارابعام ۳
راغي او ټول اسرائيل او رحبعام ته يې خبره وکړه و يې
ويل ۴ چه ستا پلار څمونږ ټغ سخت کړي وه نو اوس ته ۴
هغه سخت مزدوب ستا دَ پلار او هغه درند ټغ چه په
مونږ يې لګولي دي سپک يې کړه نو مونږ به ستا خدمت کوو
۵ نو ده ورته وويل چه تاسي ما نه پس له درېو ورځو ۵
هغو
را وګرزي او اُمّت لاړ شه ۶ نو رحبعام هغه بادشاه له ۶
سپين ږيرو چه دَده دَ پلار سليمان دَ وړاندِ ووُ چه لا

هغه ژوندي وه ودريدل چه صلاح به ئي تهِ غوښتله
و ئي ويل چه تاسي څه صلاح راکوئِ چه زه دي امّت ته
٧ ځواب وګرزوم ٧ نو دوي ده ته خبره وکړه و ئي ويل چه
که ته دَدي اُمّت دَ نېکئ دَپاره شي او دوي راضي کړي او
په ښو خبرو خبري ورسره وکړي نو دوي به ټولي ورځي ستا
٨ مريونه وي ٨ او ده هغه صلاح دَ سپين ږيرو چه ده ته ئي
صلاح ورکړه ترکه کړه او له هغو هلکانو چه له ده سره
لوي شوي وُو او دَده دَ وړاندِ ودريدل صلاح وغوښته
٩ ور ته و ئي ويل ٩ چه تاسي څه صلاح راکوئِ چه زه دي
اُمّت ته چه خبره ئي راته کړي دَه ځواب ورکړم چه وائي چه
له هغه ژغ چه ستا پلار راباندِ لګولي دَي سپک ئي کړه-
١٠ ١٠ نو هغه هلکان چه له ده سره لوي شوي وُو ځواب ورکړ
و ئي ويل چه ته دي اُمّت ته داسي ووايه چه خبره درته
کوي وائي چه ستا پلار څمونږ ژغ دروند کړ او ته ئي
رانه سپک کړه ته هغو ته داسي ووايه چه ځما کچه ګوته به
١١ ځما دَ پلار له ملا نه غټه وي ١١ او اوس ځما پلار په تاسي
باندِ دروند ژغ ايښي وه اَو زه به ستاسي په ژغ زيات کړم
ځما پلار تاسي ته په کوړو تنبيه درکړه او زه به ئي په
١٢ لړمانو (درکړم) ١٢ نو په دريمه ورځ يارابعام او ټول اُمّت
رحبعام ته ورغي لکه چه بادشاه خبره وکړه ويلي ئي وه چه
١٣ ما ته په دريمه ورځ راشئ ١٣ نو رحبعام بادشاه په سختئ
ځواب ورکړ او رحبعام بادشاه مصلحت دَ سپين ږيرو ترک
١٤ کړ ١٤ او ورسره ئي دَ هلکانو دَ مصلحت په شان خبره
وکړه و ئي ويل چه ځما پلار ستاسي ژغ دروند کړي وه
او زه به ئي په هغه زيات کړم ځما پلار تاسي ته په کوړو

۱۵ تنبیه درکړه او زه به ئي په لړمانو ۱۵ او بادشاه دَ اُمّت
وانه وریدل ځکه چه دا سبب دَ الله له جانبه وه تا چه
خداوند هغه کلام چه دَ اخیاه هغه شلونيٓ په لاس ئي
۱۶ یارابعام بن نباط ته کلام کړي وه قایم کړي ۱۶ نو چه ټول
اسرائیل ولید چه بادشاه دَ دوي وانه وریدل نو امّت بادشاه
ته ځواب ورکړ و ئي ویل چه څمونږ په داؤد کښ کومه برخه
ده او نه مو دَ یسي په زوي کښ میراث شته هر سړي
خپلي خیمي ته اي اسرائیله او خپل کورته وګوره اي داؤد
۱۷ او ټول اسرائیل خپلو خیمو ته لاړل ۱۷ او هغه بني اسرائیل
چه دَ یهوداه په ښهرونو کښ اوسیدل په دغو باندي
۱۸ رحبعام بادشاهي کوله ۱۸ او رحبعام بادشاه هدورام چه
په بیګار مقرّر وه واستاوه او بني اسرائیلو په کاڼو سنګسار
کړ او هغه مړ شه نو رحبعام بادشاه بیړه وکړه چه
۱۹ ګاډي ته وخیژي چه اورشلیم ته وتښتي ۱۹ نو اسرائیل
تر دي ورځي پوري دَ داؤد له کور نه باغي دي *

# یولسم باب

۱ ۱ او چه رحبعام اورشلیم ته ورغي نو دَ یهوداه او دَ
بنیامین له کوره یو سل اتیا زره غوره او جنګیالي ئي جمع
کړل چه له اسرائیل سره جنګ وکړي چه بادشاهي رحبعام
۲ ته وګرزوي ۲ او دَ خداوند کلام شمعیاه مردِ الله ته وشه
۳ ویل ئي ۳ چه ته رحبعام زوي دَ سلیمان بادشاه دَ یهوداه
او ټول اسرائیل په یهوداه کښ او بنیامین کښ خبره
۴ وکړه ووایه ۴ چه خداوند داسي وايي چه تاسي مه خیژئ
او له خپلو ورونړو سره جنګ مه کوئ هر سړي دِ خپل

کور ته وګرزي څکه چه دا کار زما له لوري وشه او دوي
دَ خداوند کلام واوريده او له تللو په خلاف دَ يارابعام
را وګرزيدل ۵ او رحبعام په اورشليم کښې اوسيده او په ۵
يهوداه کښې ئي قلعدار ښهرونه بنا کړل ۶ اوده بيتِ لحم ۶
او عيطام او تقوع بنا کړل ۷ او بيت صور او سوکو او عدلام ۷
او جته او مريشه او زيف او ادورايم او لخيش او ۸
عزيقه ۱۰ او صرعه او ايالون او حبرون هغه چه په يهوداه ۱۰
او بنيامين کښې قلعدار ښهرونه دي ۱۱ او کوټونه ئي ۱۱
مضبوط کړل او په هغي کښې ئي آميران او خوراک زخيري
او تيل او شراب کيښودل ۱۲ او په ټولو ښهرونو کښې ئي ۱۲
کنګلونه او برچي بيخده ډير مضبوط کړل او يهوداه او
بنيامين دَده طرفدار وُو ۱۳ او هغوي کوهنان او لاويان ۱۳
چه په ټول اسرائيل کښې وُو دَ دوي له حدُونو ورته ودريدل
۱۴ څکه چه لاويانو خپل څراګاهونه او ملکيتونه پريښودل ۱۴
او يهوداه او اورشليم ته لاړل څکه چه يارابعام او دَده
زامنو هغوي ترک کړل چه خداوند له کهانت وکړي ۱۵ او ۱۵
ده دَ خپل ځان دَپاره دَ لوړو ځايونو او دَ بياباني وځونو او دَ
سخو دَپاره چه ده جوړ کړل کاهنان مقرر کړل ۱۶ او په دوي ۱۶
پسي له ټولو فرقو دَ اسرائيل هغوي چه خپل زړونه ئي دَ
خداوند الله دَ اسرائيل وطلب ته ورکړل راغلل تاچه
دَ خداوند الله دَ پلارونو خپلو په حضور ذبحي وکړي -
۱۷ او دوي دَ يهوداه بادشاهي ټينګه کړه او رحبعام زوي ۱۷
دَ سليمان ئي دري کاله ټکړه کړ څکه چه دوي دَ داؤد او دَ
سليمان په لاري دري کاله لاړل ۱۸ او رحبعام دَ ځان دپاره ۱۸
محله ښځه لور دَ يريموت زوي دَ داؤد او ابيحايل لور دَ

الیاب زوي دَ بیبي واخستله
۱۹ ۱۹ او ده لره ئې ځامن وزیږول یعوش او شمریا او
۲۰ زاهم ۲۰ پس له دغي ئې معکه لور دَ ابشالوم واخسته او ده
۲۱ لره ئې ابیاه او عتاي او زیزا او شلومیث وزیږول ۲۱ او
رحبعام په معکه لور دَ ابشالوم مینه کوله زیاته له
خپلو ټولو ښځو او سریتو خپلو ځکه چه ده اتلس ښځي
او شپیته سُریتي واخستي او اته ویشت زامن او شپیته
۲۲ لوڼړه ئې وزیږولي ۲۲ او رحبعام ابیاه زوي دَ معکي سردار
دَده دَ ورونړو په مینځ کښ مقرّر کړ چه آمیر وِي چه
۲۳ بادشاه ئې کړي ۲۳ او دیَ هوښیار وه او ده ټول زامن
خپل په ټولو زمکو دَ یهوداه او دَ بنیامین کښ په هغو
ټولو قلعدارو ښهرونو کښ کوښي کوښي واستول او
ډیر خوراک ئې ورکړ او ډیري ښځي ئې ورته وغوښتلي❊

## دولسم باب

۱ ۱ او چه بادشاهي دَ رحبعام ټینګه شوه او ځان ئې
مضبوط شه نو دَ یهوه تورات ئې ترک کړ او ټول
۲ اسرائیل ورسره ۲ او دَ رحبعام بادشاه په پنځم کال
شیشق بادشاه دَ مصر په اورشلیم وخوت ځکه چه دوي
۳ دَ یهوه خیانت وکړ ۳ له یو زر دوه سوه ګاډیو سره او له
شپیتو زرو سوارو سره او دَ هغو خلقو چه له ده سره له
مصرَ راغلي وُو شمار ئې نه وه لوبیان او سکیّان او کوشیان
۴ ۴ او هغه قلعدار ښهرونه ئې واخستل چه دَ یهوداه وُو او
۵ اورشلیم ته ورغي ۵ نو شمعیاه نبي رحبعام ته ورغي او دَ
یهوداه رئیسانو ته چه په اورشلیم کښ دَ شیشق له مخي

جمع وُو او دوي ته ئي وويل چه يهوه داسي واپي چه
تاسي زه ترک کړي يم او زه به مو هم دَ شيشق ولاس
۶ ته ترک کړم ۶ نو دَ اسرائيل رئيسان او هغه بادشاه ځانونه
خپل ذليل کړل او و ئي ويل چه هغه خداوند صادق دي
۷ ۷ نو چه خداوند وليدل چه دوي خپل ځانونه ذليل کړل
نو دَ خداوند کلام شمعياه ته وشه و ئي ويل چه دوي
خپل ځانونه ذليل کړي دي نو زه به ئي نيست نه کړم
بلکه لږ څه ورسته به خلاصون ورکړم او زه به خپل
غضب په اورشليم باندي دَ شيشق په لاس نوي نه کړم
۸ ۸ مګر دوي به دَ هغو مريونه شي تا چه ځما په خدمت او
۹ دَ زمکي دَ بادشاهتونو په خدمت پوهه شي ۹ نو شيشق
بادشاه دَ مصر په اورشليم وخوت او دَ بيت يهوه خزاني
ئي واخستي او خزاني دَ بادشاه دَ کور ئي ټولي واخستلي
او هغه دَ سرو زرو ډالونه ئي هم واخستل چه سليمان
۱۰ جوړ کړي وُو ۱۰ او رحبعام بادشاه دَ هغو په عوض کښ
دَ زيړو ډالونه جوړ کړل او دَ زغليدونکو دَ سردارانو په
لاس چه دَ بادشاه دَ کور دَ مدخل ساتونکي وُو و ئي
۱۱ سپارل ۱۱ او داسي وشوه چه هرکله چه به بادشاه
بيت يهوه ته ننوت نو به زغليدونکي راتلل او پورته
به ئي کړل او بيا به ئي دَ زغليدونکو و تهخاني ته وروړل
۱۲ ۱۲ او چه ده خپل ځان ذليل کړ نو دَ خداوند خپګي ور نه
وګرزيده او پوره ئي نيست نه کړ او هم په يهوداه کښ
۱۳ نيک کارونه وُو ۱۳ او رحبعام هغه بادشاه په اورشليم
کښ خپل ځان ټينګ کړ او بادشاهي ئي وکړه ځکه چه
رحبعام دَ خپل بادشاه کيدلو دَ يو څلويښتو کالو وه

او اووه‌لس کاله ئې په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه هغه
ښهر چه خداوند له ټولو فرقو دَ اسرائیلَ غوره کړ چه
په کښې خپل نوم کیښږدي او دَده دَ مور نوم نعمه هغه
۱۴ عمونۍ وه ۱۴ او ده شرارت وکړ ولې چه ده خپل زړه دَ
۱۵ خداوند دَ طلب کولو ته تیار نه کړ ۱۵ او اوّل او آخر کارونه
دَ رحبعام دَ شمعیاه هغه نبي او دَ عدوي هغه رویا لیدونکي
په اخبارونو کښې دَ نسب‌نامو په کتاب کښې لیکلي شوي
نه دي څه ؟ او دَ رحبعام او دَ یارابعام په مینځ کښې ټولي
۱۶ ورځي جنګ وه ۱۶ او رحبعام له خپلو پلرونو سره څملاست
او دَ داؤد په ښهر کښې ښخ کړي شه او ابیاه زوي دَده
دَ هغه په ځاي بادشاه شه ⁜

# دیارلسم باب

۱ آ دَ یارابعام بادشاه دَ بادشاهۍ په اته‌لسم کال ابیاه په
۲ یهوداه بادشاه شه ۲ دري کاله ئې په اورشلیم کښې بادشاهي
وکړه او دَ مور نوم ئې میکایاه لور دَ اوریئیل وه له جبعې
۳ نه او دَ ابیاه او دَ یارابعام په مینځ کښې جنګ وه ۳ او
ابیاه صفونه دَ جنګ وتړل دَ جنګي جبّارانو دَ قوّت سره
دَ څلور سوو زرو غورو شویو سړیو سره او یارابعام له
اتو سوو زرو غورو سړو جبّارانو دَ قوّت سره دَ جنګ دَپاره
۴ صف‌بندي وکړه ۴ او ابیاه دَ ضماریم په غره چه دَ افرائیم
په غره کښې دي ودریده او وئې ویل چه اي یارابعامَ
۵ او ټوله اسرائیلَ څما واورئ چه ۵ په تاسي لازم نه دي
څه ؟ چه تاسي پوه شئ چه خداوند الله دَ اسرائیل بادشاهي
په اسرائیل تر ابده پوري داؤد ته او دَده زامنو ته ورکړه

٦ دَ مالکِي په وعدي سره ٦ او يارابعام زوي دَ نباط مريي دَ
سليمان زوي دَ داؤد نه پورته شوي دَي او له خپل خاوند
٧ نه ياغي شوي دَي ٧ او ده ته باطل کاره سړي زامن دَ بليعال
جمع شول او په رحبعام زوي دَ سليمان ئي خپل ځانونه
تکړه کړل چه رحبعام ځوان او نرم دله وه او دَدوي دَ
٨ وړاندِ مضبوط نه شه ٨ او اوس تاسي وائِ چه تاسي
به دَ خداوند دَ بادشاهئ دَ وړاندِ چه دَ داؤد دَ زامنو
په لاس کښ دَه ځانونه ټينګ کړئ او تاسي خو لوي ټولي
يئ او له تاسي سره زرين سخي دِي چه يارابعام تاسي ته خدايان
٩ جوړ کړي دِي ٩ تاسي دَ يهوه کوهينان دَ هارون زامن او
هغه لاويان بړزولي نه دِي څه ؟ او دَ زمکي دَ قومونو
په شان مو دَ خپلو ځانو دَپاره کوهينان جوړ کړل چه
هر يو چه راشي چه خپل لاس په غوايه زوي دَ [illegible]وا ډک
کړي او اوه مږونه نو هغه هغو لره چه خدايان نه دِي
١٠ کوهين کيږي ١٠ او مونږ چه يُو يهوه مو الله دَي او پريښي
مو نه دَي او کوهينان چه خادمان دَ يهوه دِي دَ هارون
١١ زامن او لاويان دِي چه په کار کښ دِي ١١ او هر صباح
او بيګاه يهوه لره سيزونکي قربانئِ او بخور سوزوِي او په
پاکو خوانچو دَ نذرونو ډوډي ږدِي او دَ زرو ډيوټ دَده
دَ چراغونو سره هر بيګاه دَ بلولو دَپاره څکه چه مونږ
دَ يهوه الله خپل ساتني ساتُو او تاسي خو ترک کړي دي
١٢ ١٢ او ګوره هغه الله ځمونږ په سر دَي او دَده کوهينان
هغه توريئ غږونکي دِي چه په تاسي باندِ ازار وغږوِي
نو اي بني اسرائيل تاسو له يهوه الله ستاسي دَ پلرونو
١٣ سره مه جنګيږئ څکه چه تاسي به کامياب نه شئ ١٣ ليکن

یارابعام هغه پسوني چه له ورستو پرِ باندِ راشي و څرخاوه او
دوي دَ یهوداه په مخانخ وُو او پسوني ئي دَ وروستو وه -
۱۴ ۱۴ او چه یهوداه مخ وکړ نو گوره چه جنګ په دوي باندي
له وړاندِ او له ورستو وه نو دوي یهوه ته ناري وکړي
۱۵ او کوهینان په نورو سرو غړوِنکي وُو ۱۵ او دَ یهوداه سړو
هو هوا وکړه او چه دَ یهوداه سړو هو هوا وکړه نو الله
یارابعام او تمول اسرائیل دَ ابیاه او دَ یهوداه دُ وړاندي
۱۶ ووهل ۱۶ نو بني اسرائیل دَ یهوداه له مخي نه وتښتیدل او الله
۱۷ دَدوي لاس ته ورکړه ۱۷ او ابیاه او دَده اُمت په لوي وهني
سره ووهل او له اسرائیل پنځه سوه زره غوره شوي
۱۸ سړي وژلي پریوتل ۱۸ نو اسرائیل په دغه وقت کښ ذلیل
شه او بني یهوداه بريَ ومند ځکه چه دوي په خداوند الله
۱۹ دَ پلرونو دَدوي تکیه وکړه ۱۹ او ابیاه په یارابعام پسي زغلیده
او ښهرونه ئي ونیول بیت ایل او کلي ئي او یشانه او کلي ئي
۲۰ او عفرون او کلي ئي ۲۰ او یارابعام بیا دَ ابیاه په ورخو کښ
۲۱ قوتناک نه شه او خداوند هغه وواهه او مړ شه ۲۱ او
ابیاه مضبوط شه او دَ ځان دَپاره ئي څوارلس ښځي واخستي
۲۲ او دوه ویشت زامن او شپاړس لونړه ئي وزیږول ۲۲ او باقي
خبري دَ ابیاه او دَده لاري او دَده کلامونه دَ عِدّو نبي په
تفسیر کښ لیکلي دي ؛

## څوارلسم باب

۱ ۱ او ابیاه له خپلو پلرونو سره خملاست او دَ داؤد په ښهر
کښ ئي ښخ کړ او دَده زوي آسا دَده په ځاي بادشاه شه
۲ دَده په ورخو کښ لس کاله زمکه په سکونت وه ۲ او آسا
هغه کول چه دَ خداوند خپل الله په سترګو کښ ښه وُو

٣ او پردئ مذبحونه او اوچت ځايونه ئې لري کړل او صورتونه ٣
ئې مات کړل او هغه اشريم ئې پريکړل ٤ او يهوداه ته ٤
ئې وويل چه يهوه الله دَ پلرونو خپلو ولټوي او چه
تورٰيت او فرض په عمل راوړي ٥ او ده له ټولو ښهرونو ٥
دَ يهوداه نه اوچت ځايونه او دَ نمر صورتونه لري کړل
او دَده دَ وړاندِ زمکه په سکونت وه ٦ او په يهوداه کښ ٦
ئې قلعدار ښهرونه بنا کړل ځکه چه زمکه په سکونت وه
او په دغو کالونو کښ په دغي باندِ جنګ نه وه ځکه چه
خداوند ورته آرام ورکړ ٧ او ده يهوداه ته وويل چه ٧
موږ دا ښهرونه جوړ کړو او دَ هغو په ګِرداګِرد دِ ديوالونه
او برجونه او دروازي او اړمونه وځرخوو ځوچه زمکه
څموږ دَ وړاندِ وِي ځکه چه موږ خداوند الله خپل
لټولي دَي او ده له هري خوا آرام راکړ نو هغو بنا کړل او
کامياب شول ٨ او آسا لره لښکروه چه ګنګلونه او برچي ٨
ئې پورته کول له يهوداه نه دري سوه زره او له بنيامين
چه ډالونه ئې پورته کول او په لينديِ ئې څَرِي کولي دوه سوه
اتيا زره دا ټول جبّاران دَ قوّت وُو ٩ او دوي ته زارح ٩
هغه کوشِي له لس لکه لښکره او له دريو سوو ګاډيو
سره ور ووت او مريشه ته ورغي ١٠ او آسا ئې مخي ته ووت ١٠
او دَ جنګ دَپاره ئې صفونه جوړ کړل دَ صفاته په خوړي
کښ مريشه څخه ١١ او آسا خداوند الله خپل ته ناره ١١
وکړه او و ئې ويل اي خداوندَ ستا په نزد هيڅ فرق نشته
چه ته قادر سره مددګارِي وکړي يادَ هغه چه قوّت
نه لرِي اي خداونده څموږ الله ته څموږ مددګارِي
وکړه او ستا په نوْم موږ په دِي ټولِي تلل کوو ځکه چه

مونږ په تا کومک وکړو اي خداونده ته ځمونږ الله يي
هيڅ سړي دِ په تا زوراور نه وِي ١٢ نو خداوند کوشيان ١٢
دَ آسا دَ وړاندِ او دَ يهوداه دَ وړاندِ ووهل نو کوشيان
وتښتيدل ١٣ او دوي آسا او هغه قوم چه ورسره ١٣
وو وزغليدل تر جرار پوري او له کوشيانو پريوتل
چه ژوندي ورنه پاتي نه شه چه دوي دَ خداوند دَ وړاندِ
مات شول او دَده دَ لښکر دَ وړاندِ او دوي بيحده ډير
لوټونه واخستل ١٤ او هغه ټول ښهرونه چه دَ جرار ١٤
په ګرداګرد وُو وَ يِي ووهل ځکه چه هيبت دَ يهوه په دوي
وه او ټول ښهرونه يي لوټ کړل ځکه چه په هغو کښ
ډير لوټ وه ١٥ او دوي دَ څارويو خيمي هم ووهلي او ډيري ١٥
غيلي او اوښي يي په بند بوتلي بيا اورشليم ته وجاروتل ؛

# پنځلسم باب

١ او دَ الله روح په عزرياه زوي دَ عوديد وه ٢ او هغه ١-٢
دَ آسا مخي ته ورغي او ورته يي ووېل چه ځما واورئ
اي آسا او ټول يهوداه او بنيامين يهوه له تاسي
سره دَئ هرڅو چه تاسي له دَه سره يئ او که يي تاسي
ولټوئِ نو تاسي ته به وموندلي شي او که يي پريږدئ نو
تاسي به هم پريږدِي ٣ او له ډيرو ورځو اسرائيل بي له ٣
حقه الله او بي له معلّم کوهنَ او بي تورَيتَ وُو ٤ ليکن ٤
هرکله چه دوي په خپل ضرر کښ خداوند الله دَ اسرائيل
ته وجاروتل او وَ يِي لټاوه نو دوي ته وموندلي شه ٥ او ٥
په دغو زمانو کښ وتونکي او ننه وتونکي ته سلامت نه وه
بلکه په ټولو اوسيدونکو دَ ځمکي لويه غوغا وه ٦ قوم په ٦

قوم او ښهر په ښهر تكولي شوي وُو ځكه چه الله دوى
٧ په ټول ضرر سره پریشان كړل ٧ نو تاسي تكړه شئ او ستاسي
لاسونه دِ پريږي نه وزي ځكه چه ستاسي دَ فعلونو مزدوري
٨ به وشي ٨ او چه آسا دا كلام او نبوّت دَ عوديد هغه نبي
واوريده نو تكړه شه او مكروهات ئې له ټولي زمكي دَ يهوداه
او دَ بنيامينَ او له هغو كليو چه دَ افرائيم له كوهستانه ئې
ونيول لري كړل او هغه منځ دَ يهوه چه دَ يهوه دَ
٩ دهليز دَ وړاندِ وه نوي ئې كړه ٩ او ټول يهوداه او بنيامين
او بيګانه ورسره له افرائيمَ او له منسّي نه او له شمعونه
ئې جمع كړل ځكه چه ډير له اسرائيل نه ور پريوتل هركله
١٠ چه هغوى وليدل چه يهوه الله ئې له ده سره دي ١٠ او
دوي دَ آسا دَ بادشاهيْ په پنځلسم كال په دريمي مياشتي
١١ په اورشليم كښ جمع شول ١١ او دوي په هغي ورځي له
هغه لوټ نه چه راوړي ئې وه دَ يهوه دَپاره اوه سوه غوا
١٢ او اووه زره ګډونه ذبح كړل ١٢ او په عهد كښ ننوتل چه
په خپل ټول زړه سره او په خپل ټول ځان سره چه يهوه
١٣ الله دَ پلارونو خپلو ولټوي ١٣ او چه هر هغه څوك چه
يهوه الله دَ اسرائيل نه لټوي ودِ وژلي شي له وړوكي تر
١٤ لويَ له ښځو تر سړو پوري ١٤ او په لوي آواز او په هُوْهُوا
١٥ او په نوريو او په قرناؤ سره ئې دَ يهوه قسم وخوړ ١٥ او
ټول يهوداه خوشحاله شه په هغه قسم باندي ځكه چه
دوي په ټولو زړونو خپلو سره قسم خوړلي وه او هغه ئې
په ټولي رضا سره ولټاوه او هغه دوي له وموندلي
١٦ شه او دوي ته يهوه له هري خوا آرام وركړ ١٦ او معكه
هم مور دَ هغه آسا بادشاه ده له دَ بيګمتوب نه لري

کړله ځکه چه دي دَ آشیراه دَپاره یو پلیت بُت جوړ کړي
وه او آسا هغه پلیت بُت دَ دي پریکړ او میده ئې کړ او
۱۷ دَ قدرون په خوړ کښ ئې وسوزاوه ۱۷ او لوړي دَ
اسرائیل ئې لرې کړي نه شولې مګر دَ آسا زړه په ټولو ورځو
۱۸ دَده کښ سالم وه ۱۸ او ده دَ خپل پلار مقدّس کړي ځیزونه
او خپل مقدّس کړي ځیزونه دَ سپینو او دَ سرو زرو
۱۹ او کالي دَ بیت الله ئې دننه راوړل ۱۹ او دَ آسا بادشاه
تر پنځه دیرشم کاله پوري هیڅ جنګ نه وه ❊

# شپاړشم باب

۱ دَ آسا دَ بادشاهۍ په شپږ دیرشم کال دَ اسرائیل بادشاه
بعشا په یهوداه وخوت او رامه ئې بنا کړ تا چه هیڅوک
پري نه دي چه آسا بادشاه دَ یهوداه ته وروزي یا ور
۲ نه وزي ۲ او آسا سپین زر او سره زر دَ خداوند دَ کور
له خزانو نه او دَ بادشاه له کوره ویستل او بنهدد
بادشاه دَ آرام ته چه په دمشق کښ اوسیده واستول
۳ و ئې ویل ۳ چه ځما په مینځ او ستا په مینځ او ځما دَ
پلار او ستا دَ پلار په مینځ کښ وعده وه کوره زه
تاته سپین او سره زر در آستوم نو ته راشه خپله
وعده له بعشا بادشاه دَ اسرائیل سره باطله کړه نو هغه
۴ به رانه وځیژي ۴ نو بنهدد دَ آسا بادشاه واوریدل او
هغه سرداران دَ لښکرو چه دَده وُو په ښهرونو دَ اسرائیل
ئې واستول او عیون او دان او ابل مایم او ټولي انبارخانې
۵ دَ ښهرونو دَ نفتالي ئې ووهلې ۵ او چه بعشا واوریدل
نو دَ رامه بنا کول ئې پریښودل او له خپل کاره تم شه

٦ ٦ نو آسا هغې بادشاه ټول يهوداه واستول او دَ رامه
کاڼِي او لرګي چه بعشا پرې بنا کولَ يو ئې وړل او په
٧ هغو ئې جبعَه او مصفا بنا کړل ٧ او په دغه وقت کښ
حناني هغه. رؤيا ليدونکي آسا بادشاه دَ يهوداه ته راغې
او ور ته ئې وويل دَدې دَپاره چه تا دَ آرام په بادشاه
تکيه وکړه او په يهوه الله خپل دِ تکيه ونه کړه دَدې دَپاره
دَ آرام دَ بادشاه لښکر ستا له لاس نه خلاص شوي دَي
٨ ٨ هغه کوشيان او هغه لوبيان ډېر لښکر نه وه څه؟ له
بېحده ډېرو ګاډيو او اسونو سره نو چه تا په يهوه تکيه
٩ وکړه دوی ئې ستا په لاس درکړل ٩ ځکه چه سترګي دَ خداوند
په ټولي زمکي ګرزيدونکي دِي چه له هغو دَپاره چه زړونه
ئې دَده په لورِي دِي خپل ځان مضبوط ښکاره کړِي او
تا په دي کښ احمقِي وکړه له دې سببه له اوس نه به په
١٠ تا باندي جنګونه وِي ١٠ نو آسا په هغه رؤيا ليدونکِي سرِي
په قهر شه او هغه ئې په بيت دَکُندي کښ واچاوه ځکه
دَي له هغه نه په دي خبره خپه شه او په دغه وقت
١١ کښ آسا خو ځيني خلق رټِي رټِي کړل ١١ او ګوره چه دَ
آسا هغه اوّلي او هغه آخرې خبرې دَ يهوداه او دَ اسرائيل
١٢ دَ بادشاهانو په کتاب کښ ليکلي شوِي دِي ١٢ او آسا دَ
خپلي بادشاهئِ په نه ديرشم کال په پښو مرض ونيوه ځو
چه مرض ئې ډېر شه او هم په خپل مرض کښ ئې. يهوه
١٣ ونه لټاوه بلکه طبيبان ١٣ بيا آسا له خپلو پلرونو سره
خملاست او دې دَده دَ بادشاهئ په يو څلويښتم کال مړ شه
١٤ ١٤ او هغوِي دي په هغه قبر کښ چه ده دَ خپل ځان
دَپاره دَ داؤد په ښهر کښ کنودلي وه ښخ کړه او په هغه

کتب ئې ښخ کړلې چه له بلسان اورنګ اورنګ عطرو ډک
وه چه موافق دَ ترکيب دَ عطارئ جوړ شوي وه او ډېر
لويه لمبه ئې ورته بله کړه ❖

# اوه لسم باب

آو دَده په ځاي کښې دَده زوي يهوشافاط بادشاهي ۱
وکړه او دغه په اسرائيل خپل ځان مضبوط کړ ۲ او دَ ۲
يهوداه په ټولو قلعدارو ښهرونو کښې ئې لښکر مقرّر
کړ او دَ يهوداه په زمکه او دَ افرائيم په ښهرونو کښې
چه آسا دَده پلار نيولي وُو لښکرګاهونه مقرّر کړل ۳ او ۳
خداوند له يهوشافاط سره وه ځکه چه دي دَ خپل پلار
داوُد په اوّلي لاري تهٔ او بعليم ئې و نه لټول ۴ ليکن ده ۴
دَ خپل پلار الله لټاوه او دَ هغه په فرضونو ئې تلل
کول او نه دَ اسرائيل دَ عملونو په موافق ۵ نو خداوند ۵
دَده په لاس کښې بادشاهي ثابته کړه او ټول يهوداه
يهوشافاط ته پيشکشئ ورکړې او ده لره ډېر دولت او
عزّت وه ۶ او دَده زړه دَ خداوند په لارو کښې ټکړه شه ۶
او زيات له دي ئې لوړ ځايونه او آشيريم ئې هم له يهوداه
لرې کړل ۷ او په دريم کال دَده دَ بادشاهئ کښې خپلو ۷
سردارانو بنحايل او عوبدياه او زکرياه او نتنئيل او ميخاياه
ته واستول چه دَ يهوداه په ښهرونو کښې دِ تعليم ورکوي
۸ او له دوي سره لاويان شمعياه او نتنياه او زبدياه ۸
او عسائيل او شميراموث او يهوناثان او دَ ادونياه او
طوبياه او طوب ادونياه چه لاويان وُو او ورسره اليشمع
او يهورام کوهينان ۹ او دوي په يهوداه کښې تعليم ورکاوه ۹

او دوي ښځه دَ يهوه دَ تورِيت كتاب وه او په ټولو ښهرو
١٠ دَ يهوداه كښ گرزيدل او اُمّت ته يې تعليم كاوه ١٠ او دَ
يهوه هيبت په ټولو بادشاهتونو دَ زمكي وه چه دَ يهوداه
په گِرداگِرد وُو او دوي له يهوشافاط سره و نه جنگيدل
١١ ١١ او ځني له فلسطيانو يهوشافاط لره پيشكشيځ او خراج
روپيئ راوړل او عربو هم ده ته ځيلي مړونه راوستل
اووه زره او اووه سوه مړونه او اووه زره اووه سوه
١٢ وزونه ١٢ او يهوشافاط تلل كول او تر لوي درجي پوري لوئ
او په يهوداه كښ يې باري او دَ انبارخاني ښهرونه جوړ كړل
١٣ ١٣ او دَده دَ يهوداه په ښهرونو كښ ډير كاروه او جنگيالي
١٤ سړي يې جبّاران دَ قوّت په اورشليم كښ وُو ١٤ او ده دَ
هغو بازخواست په موافق دَ كورونو دَ پلرونو دَدوي له
يهوداه نه سرداران دَ زرگونو عدنه هغه سردار او له ده
١٥ سره جبّاران دَ قوّت دري سوه زره ١٥ او دده په يو لاس
سره يهوحانان هغه سردار او له دغه سره دوه سوه اتيا
١٦ زره وُو ١٦ او دَ هغه په بل لاس سره عمسياه زوي دَ زكري
چه يهوه لره يې ځيل ځان نياز ايښي وه او له دغه سره
١٧ دوه سوه زره جبّاران دَ قوّت وُو ١٧ او له بنياسين الياداع
جبّار دَ قوّت او له دغه سره وسله دار دَ ليندو او دَ ډالونو
١٨ دوه سوه زره ١٨ او دَ دغه په لاس سره يهوزاباد او له دغه
١٩ سره يو سل اتيا زره تيار دَ جنگ دَپاره وُو ١٩ دغه دَ بادشاه
خدمتگاران وُو بي له هغو نه چه بادشاه په ټول يهوداه
په هغو محكمو ښهرونو كښ مقرّر كړي وُو ✣

## اته لسم باب

١ ١ او يهوشافاط لره ډير دولت او عزّت وه او له اخاب

٢ سره ئې خوښې کولې ٢ او دَ دوو کالو په ختم اخاب سامرِي
ته ورکوز شه او اخاب ډېرې مېږې او غوايان ذبح کړل دَه
لره او هغو خلقو لره چه له ده سره وُو او دې ئې ولمساوه
٣ چه ور سره راموث جلعاد ته وخيژي ٣ او آخاب بادشاه
دَ اسرائيل يهوشافاط بادشاه ته ووېل چه ته به له ما سره
راموث جلعاد ته ځې که نه؟ او ده ورته ووېل لکه چه ته ئې
هسې زه يم او لکه ستا خلق هسې ځما خلق او مونږ به
٤ له تا سره په جنګ کښې يُو ٤ او يهوشافاط بادشاه دَ
اسرائيل ته وُوِ چه که نن ورځ دَ خداوند له کلام نه
٥ پوښتنه وکړې ٥ نو دَ اسرائيل بادشاه څلور سوه نبيان
جمع کړل او ورته ئې ووېل چه مونږ دِ راموث جلعاد
ته دَ جنګ دَپاره لاړ شو يا دِ پرې ئې ږدو؟ نو هغو ورته
٦ ووېل وخيژه هغه به الله دَ بادشاه لاس ته ورکړي ٦ نو
يهوشافاط ووېل چه دلته نبي دَ يهوه نشته چه مونږ
٧ ورنه پُښتنه وکړُو ٧ نو دَ اسرائيل بادشاه يهوشافاط ته
ووېل يو سړې شته چه دَ يهوه پُښتنه ورنه وکړو ليکن
زه ورسره کينه لرم ځکه چه هغه په ما دَ ښيګړې دَپاره
نبوّت هيڅرې نه کوِي بلکه همېشه ورځې ئې دَ بلا دَپاره کوِي او
هغه ميکاياه بنِ ايمله دې نو يهوشافاط ووېل چه
٨ بادشاه دِ داسې نه وائي ٨ نو بادشاه دَ اسرائيل يو خصِي
راوباله او ورته ئې ووېل چه ميکاياه بنِ ايمله زر راوله -
٩ ٩ او بادشاه دَ اسرائيل او يهوشافاط بادشاه دَ يهوداه
هر يو په خپل تخت ناست وه خپلې شاهِي قبا ئې آغوستې
وې او دَ سامرې دَ دروازې مدخل ځمکه په هوار ځاې کښې
ناست وُو او هغو ټولو نبيانو دَدوې دَ وړاندِ نبوّت کاوه

۱۰ ۱۰ او صدقیاه زوي دَ کنعنه دَ خپل ځان دَپاره دَ
اوسپني ښکرونه جوړ کړل او وئي ويل خداوند داسي
وايي چه ته به په دي اراميان په ټکروهي ځو چه تمام شي
۱۱ ۱۱ او ټولو نبيانو هم داسي نبوّت کاوه ويل ئي چه راموث
جلعاد ته وخيژه او کامياب شه او خداوند به هغه
۱۲ دَ بادشاه په لاس کښي ورکړي ۱۲ او هغه استازي چه
دَ ميکاياه بللو ته ورغلي وه خبره ئي وکړه و ئي ويل کوره
ټول انبياؤ په يوي خولي بادشاه ته ښه خبره کوي نو
ستا خبره دِ هم دَ يوه دَ هغو په شان وي او ښه خبره
۱۳ کوه ۱۳ او ميکاياه وويل حي يهوه چه هغه چه خما
۱۴ الله دَي راته ووايي زه به په هغه خبره وکړم ۱۴ او چه
بادشاه ته ورغي بادشاه ورته وويل اي ميکاياه موږ
دَ جنګ دَپاره راموث جلعاد ته لاړ شُو يا پري ئي ږدو
او ده وويل وخيژئ او کامياب شئ او دوي به ستاسي
۱۵ په لاس درکړي شي ۱۵ او دغه بادشاه ورته وويل چه زه
په څو واره قسم درکړم چه ته ما ته دَ خداوند په نوم
۱۶ بي له ريښتيا مه وايه ۱۶ نو ده وويل چه ما ټول اسرائيل
په غره باندِ تار په تار دَ ګډورو په شان وليدل چه
شپون ئي نه لاره نو يهوه وُوِ چه دَ دغو خاوند نشته
۱۷ هر سړَي دِ خپل کور ته په سلامتئ وګرزي ۱۷ نو بادشاه
دَ اسرائيل يهوشافاط ته وويل چه ما تاته نه ويل څه؟
چه دغه په ما باندِ دَ ښيګړي نبوّت نه کوي بلکه دَ بلا
۱۸ ۱۸ او هغه وويل لاکن ته دَ خداوند واوره چه ما يهوه
په خپل تخت ناست وليد او ټول لښکر دَ آسمان دَده
۱۹ په ښي او په کيڼ لوري ولاړ ۱۹ نو يهوه وويل چه څوک

به آخاب بادشاه دَ اسرائيل وغولوي چه دي وخيژي او
په راموث جلعاد کښ پريوزي؟ نو يو وويل په دي ويلو سره
چه لکه داسي او بل ويل چه لکه هسي ۲۰ بيا هغه روح ووت ۲۰
او دَ يهوه دَ وړاندِ ودريده و ني ويل چه زه به ئي وغولوم
او يهوه ورته وويل چه په څه سره؟ ۲۱ او ره به ووزم او ۲۱
دَ هغه دَ ټولو نبيانو په خولو کښ به دَ دروغو روح شم
او هغه وويل چه ته به ئي وغولوي او غالب به شي څه
او داسي وکړه ۲۲ اوس گوره چه خداوند ستا دَ دغو ټولو ۲۲
نبيانو په خولو کښ دَ دروغو روح ايښي دي او خداوند
ستا په باب دَ بلا خبره کړي ده ۲۳ نو صدقياه بن کنعنه ۲۳
وړاندي شه او ميکاياه ئي په وټ وواهه او ويل ئي چه
له کومي لاري روح دَ يهوه له ما نه تير شه چه له تا سره
خبري کوي ۲۴ او ميکاياه وويل چه گوره ته به په هغي ورځي ۲۴
کښ ووينې چه ته له يوې خونې بلي خونې ته ننوزي چه خپل
ځان پټ کړي ۲۵ نو بادشاه دَ اسرائيل ووِ چه ميکاياه ۲۵
واخلئ او آمون سردار دَ ښهر او يوآش زوي دَ بادشا
ته ئي ورولئ ۲۶ او وايئ چه بادشاه داسي وايي چه دغه ۲۶
په زندانخانه کښ کيږدئ او دَ تنگئ ډوډئ پري خوروئ
او دَ تنگئ اوبه پري ښبنوئ څو چه زه په سلامتئ راوگرزم
۲۷ او ميکاياه وويل چه که ته په سلامتئ سره را و ۲۷
گرزيدي نو خداوند په ما په معرفت کلام کړي نه وي او
ده وويل چه اي قومونو تاسي ټول واورئ
۲۸ نو بادشاه دَ اسرائيل او يهوشافاط بادشاه دَ ۲۸
يهوداه راموث جلعاد ته وختل ۲۹ او بادشاه دَ اسرائيل ۲۹
يهوشافاط ته وويل چه زه به خپل لباس بدل کړم او

جنګ ته به ننوزم او ته خپل لباس واغونده نو بادشاه
٢٩ دَ اسرائيل خپل لباس بدل کړ او جنګ ته ننوت ٣٠ او
دَ آرام بادشاه سردارانو دَ ګاډيو ته چه دَده وُو وفرمايل
چه تاسي مه له وړوکي سره مه له لوی سره جنګ کوئ مګر
٣١ يواځي دَ اسرائيل له بادشاه سره ٣١ نو هرکله چه دَ
ګاډيو سردارانو يهوشافاط وليد و ني ويل چه دَ اسرائيل
بادشاه دا دي او دَ جنګ کولو دَپاره ئې ګير کړ نو يهوشافاط
ناره وکړه او خداوند دده مدد وکړ او الله هغوي ور نه
٣٢ وګرزول ٣٢ او هرکله چه سردارانو دَ ګاډيو وليد چه دغه
دَ اسرائيل بادشاه نه دَی له ورستو ورنه وګرزيدل -
٣٣ ٣٣ او يو سړي په خپلي سادګئ لينده راکښله او بادشاه
دَ اسرائيل ئې دَ زغري په مينځ او دَ پيوندونو په مينځ کښ
وويشت او ده ګاډيوان ته وويل چه لاس واړوه او ما له
٣٤ لښکر ته وباسه ځکه چه زه ژوبل شوم ٣٤ او په هغه
ورځي جنګ سخت وشه او بادشاه دَ اسرائيل په ګاډي
کښ ودريده دَ آرام په مقابل تر ماښامَ پوري او دَ
نمر ډُبيدلو په وقت مړ شه ❊

# نولسم باب

١ آ او يهوشافاط بادشاه دَ يهوداه خپل کور ته په سلامتئ
٢ سره اورشليم ته وجاروت ٢ او دَ ده مخي ته ياهو بن
حناني رؤيا ليدوني ور ووت او هغه مَلِکْ يهوشافاط ته
وويل چه ته دَ شريرانو سره مددګارِي کوي او دَ خداوند
دَ نفرتناکو سره مينه کوي ښه ؟ دي دَپاره دَ خداوند
٣ له لوري په تا باندِ قهر راغي ٣ ليکن په تا کښ څو نيکي خبري

و منډلې شوي ځکه چه هغه اشيريان دِ له زمکي نيست
کړل او خپل زړه دِ دَ الله وَطلب کولو ته تيار کړي دَيَ
۴ ۳ او يهوشافاط په اورشليم کښې تمِ شه بيا وجاروت
او دَ اُمّت په مينځ کښې له بيرسبع نه دَ افرائيم تر کوهستانَ
پوري ووت او هغوي ئې ويهوه الله دَ پلرونو دَدوي ته
۵ وګرزول ۴ او ده په ټولي زمکي کښې قاضيان ودرول دَ
۶ يهوداه په ټولو محکمو ښهرونو کښې ښهر په ښهر ۵ او
ده هغو قاضيانو ته وويل ګورئ چه څه کوئ ځکه چه
تاسي دَ انسان دَپاره قضا نه کوئ بلکه دَ خداوند دَپاره
۷ او دي دَ قضا په کلام کښې له تاسي سره دَيَ ۶ او اوس
دِ هيبت دَ خداوند په تاسو بانِدِ وِي و ئې ساتئ او په
عمل ئې راوړئ ځکه چه څموږ الله څخه بدِي نشته نه
۸ طرفدارِي نه رشوت اخستل ۷ او هم داسي يهوشافاط
په اورشليم کښې له لاويانو اوله کوهينانو او دَ اسرائيل
له پدرِي سردارانو دَ خداوند دَ قضا دَپاره اودَ مقدمو
۹ دَپاره ودرول او هغوي اورشليمِ ته وجاروتل ۸ او ده
ورته و فرمايل چه تاسي دَ خداوند په ويره په امانتدارِئ
۱۰ او په سالِم زړه سرهِ کار کوئ ۹ او هره مقدمه چه به
راشِي ستاسي له ورونړو نه چه په خپلو ښهرونو کښې
اوسي دَ خون په مينځ دَ خون: دَ توريت په مينځ دَ فرضونو
دَ حکمونو يا دَ عدالتونو نو تاسي به ورته ظاهر کړئِ چه
خداوند لره ګرم نه وِي چه په تاسي او ستاسي په ورونړو
۱۱ قهر نه وِي داسي کار کوئِ او تاسي ګرم نه شئِ ۱۰ او ګورئ
امرياه کوهين دَ خداوند په ټولو خبرو کښې په تاسو
باندي دَي او زبدياه زوي دَ اسمٰعيل دَ يهوداه په کور دَ

بادشاه په ټولو خبرو کښې أمير دې او هغه لاويان
حاکمان ستاسي دَ وړاندِ دِي ټينګ شئ او کار کوئ او
خداوند له نيکانو سره وِي ❊

## شلم باب

۱ ‌آ او پس له دې داسي وشوه چه بني مواب او بني عمون
او ورسره له عمونيانو دَ جنګ دَپاره په يهوشافاط باندي
۲ راغلل ۲ نو څو کسان راغلل او يهوشافاط ته ئي څرګند کړ وئي
وِيل چه په تا باندِ ډير خلق دَ درياب له پوري غاړي راځي
له ارام نه او ګوره چه دوي په حصاصون تمر کښې دِي چه
۳ دغه عينِ جدِي دَي ۳ نو يهوشافاط وويريده او مخ ئي ورکړ
چه خداوند ولټوي او په ټول يهوداه کښې ئي دَ روژي
۴ منادِي وکړه ۴ او يهوداه جمع شه چه خداوند ولټوي او
له ټولو ښهرونو دَ يهوداه راغلل چه خداوند ولټوي
۵ ۵ نو يهوشافاط دَ يهوداه او دَ اورشليم په ټولي کښې
۶ په بيت يهوه دَ لوي غولي دَ وړاندِ ودريده ۶ او و ئي
ويل اي خداونده ځمونږ دَ پلرونو الله ته هغه په آسمانو
کښې الله نه يي څه؟ او ته په ټولو بادشاهتونو دَ قومونو
حاکم نه يي؟ او ستا په لاس کښې قوّت او جباري ده او
۷ هغه څوک نشته چه ستا په خلاف ودريږي ۷ ته هغه
الله ځمونږ نه يي چه دَدي زمکي اوسيدونکي دِ دَ خپل
أمّت اسرائيل له مخ نه وشړل او هغه دِ دَ ابراهيم
۸ خليل خپل واولاد ته تر ابدَ پوري ورکړه ۸ نو دوي په
هغي کښې و اوسيده او په هغي ئي تاته مقدّس بِنا کړ
۹ و ئي ويل ۹ هرګاه چه په مونږ باندِ به څه بلا راشي

تُوره یا آفت یا وبا یا لوږه او مونږ به دَ دي بیت دَ
وړاندِ ودرېږو ځکه چه ستا نوم په دي بیت دَي او
تا ته به مو دَ خپلو تکلیفو په باب ناره وکړو نو
تا به واورېدل او مونږ به دِ خلاص کړو ۱۰ او اوس ګوره ۱۰
چه بني عمون او مواب او کوهستان دَ سعیر هغوي چه
تا اسرائیل نه پرېښودل چه دوي ته ورننوزي هغه وقت
چه دوي دَ مصر له زمکي راغله بلکه ورنه لري شول او
دوي ئې هلاک نه کړل ۱۱ نو ته ګوره دوي مونږ له بدله ۱۱
راکوي چه راځي تا چه مونږ ستا له میراث نه چه مونږ
ته دِ په وراثت راکړي دَي وشړي ۱۲ اي ځمونږ الله ته به ۱۲
په دوئ حکم ونه کړي څه؟ ځکه چه دَ دغه لوي تولي دَ
وړاندِ چه را باندِ راځي ځمونږ هیڅ قوّت نشته او مونږ نه
پوهېږو چه څه وکړو لیکن سترګي مو ستا په لوري دِي
۱۳ او ټول یهوداه دَ یهوه دَ وړاندِ ولاړ وه له خپلو ۱۳
تپو له خپلو ښځو او له خپلو زامنو سره ۱۴ او په یحزئیل ۱۴
بنِ زکریاه بنِ بنایاه بنِ یعیئیل بنِ متنیاه دَ هغه لاوِي له
بنِ آساف نه دَ جماعت په مینځ کښي دَ یهوه روح پرِ باندِ
راغي ۱۵ او وئې ویل ونغوږئ اي ټوله یهوداه او دَ اورشلیم ۱۵
اوسېدونکو او اي یهوشافاط بادشاه تاسو ته خداوند
داسي وائي چه تاسي مه وېرېږئ او مه ترسېږئ دَ دغه
ډېر تولي له مخې نه چه دغه جنګ تاسي لره نه دَي بلکه
الله لره دي ۱۶ تاسي به صبا په دوي باندِ کوزېږئ ګوره ۱۶
هغوي دَ صیص په لوړي خېژي او تاسي ته به دَ یرئیل
دَ بیابان دَ وړاندِ دَ رود په آخر کښي در وموندلي شي۔
۱۷ تاسي ته جنګ کول په دي کښي په کار نه دِي تېنګ شئ ۱۷

ودرېږئ او دَ يهوه خلاصون چه له تاسي سره به وِي وګورئ
اي يهوداه او اي اورشليمَ مه ويرېږئ او مه ترسېږئ صبا
۱۸ دَ دوي مخي ته ورووزئ او يهوه به درسره وِي ۱۸ او يهوشافاط
زمکي ته پرمخي ټيټ شه او ټول يهوداه او اوسيدونکي دَ
اورشليم دَ يهوه دَ وړاندِ پريوتل چه يهوه ته سجده
۱۹ وکړي ۱۹ نو لاويان له بني قهاتيانو او له بني قورحيانو
پورته شول چه يهوه الله دَ اسرائيل ته پَه لوي آواز
۲۰ په اعلیٰ ثنا وکړي ۲۰ او دوي صبا وقتي پورته شول او
دَ تقوع بيابان ته ووتل او چه دوي ووتل نو يهوشافاط
ودريده او وئي ويل څما واورئ اي يهوداه او اي اوسيدونکو
دَ اورشليم په يهوه الله خپل ايمان راوړئ نو به په
امان شئ دَده په نبيانو ايمان راوړئ نو کامياب به شئ
۲۱ ۲۱ او چه اُمت سره پند اخستلي وه نو ده سرودګر يهوه
لرِه ودرول چه په زينت دَ پاکيزګئ کښ دَ وتلو په وقت
ثنا کونکي دَ جنګيالو دَ وړاندِ وِي او وايي چه يهوه لره حمد
۲۲ کوئ ځکه چه مهرباني دَده تر ابدَ پوري ده ۲۲ او په هغه
وقت چه دوي په سندرو او په ثنا دَده شروع وکړه نو
خداوند په بني عمون او په موآب او دَ شعير دَ کوهستان
چه په يهوداه راتلل پټکني وال ولګول او هغوي ووهلي
۲۳ شول ۲۳ او بني عمون او موآب دَ شعير دَ کوهستان دَ اوسيدونکو
په خلاف ودريدل چه حرم او برباد ئي کړي او چه
دوي دَ شعير اوسيدونکي تمام کړل نو هر سړي دَ خپل
۲۴ ملګړي دَ نيست کولو سدد وکړه ۲۴ او چه يهوداه دَ څوکيدارانو
برج ته په بيابان کښ ورغي نو هغه ټولي ته ئي نظر وکړه
او ګوره هغوي مړي په زمکي پراته وُو او هيڅوک خلاص

نه وه ٢٥ نو يهوشافاط او دَده اُمّت راغي چه دوي ٢٥
شوک لوټ کړي نو دَدوي په مېنځ کښ ئي مالونه او مړي
او قيمت بها زيورات ډير ومندل او دَ خپلو ځانونو دَپاره
ئي وکاږل دومره چه پورته کولي ئي نه شول او تر دريو
ورځو پوري ښکونکي دَ لوټ وُو ځکه چه هغه ډير وُو
٢٦ او په څلورمه ورځ دَ براکاه په خوړ کښ جمع شول ٢٦
ځکه چه هلته ئي دَ يهوه دَ نوم مبارکي وکړه دي دَپاره
دَ هغه ځاي نوم تر دي ورځي پوري دَ برکت خوړ بولي
٢٧ بيا بېرته سړي دَ يهوداه او دَ اورشليم او يهوشافاط ٢٧
دَدوي په سر کښ وګرزېدل چه اورشليم ته په خوښئ
سره وجاروزي ځکه چه يهوه دوي دَدوي په دُشمنانو
خوشحال کړل ٢٨ او دوي اورشليم ته په ربابونو او په ٢٨
ستارونو او په تورنګونو سره بيت يهوه ته ننوتل ٢٩ او ٢٩
هيبت دَ الله په ټولو بادشاهتونو دَ زمکي وه هرکاه چه
دوي واورېدل چه يهوه دَ اسرائيل له دښمنانو سره
وجنګيده ٣٠ او دَ يهوشافاط په بادشاهي کښ سکون شه ٣٠
او الله ورله له هره طرفه ارام ورکړ
٣١ او يهوشافاط په يهوداه بادشاهي کوله او چه ٣١
دي بادشاه کېده دَ پنځه دېرشو کالو وه او په اورشليم
کښ ئي پنځه ويشت کاله بادشاهي وکړه او دَده دَمور نوم عزوبه
لور دَ شلحي وه ٣٢ او دي دَ خپل پلار آسا په لاري تَه ٣٢
او ورنه لري نه شه دَ هغه دَ کولو دَپاره چه دَ خداوند
په سترګو کښ راست وُو ٣٣ مګر اوچت مکانونه لري ٣٣
نه کړي شول بلکه لا تر اوسه پوري هغه اُمّت خپل زړونه
دَ خپلو پلرونو الله ته تيار کړي نه وُو ٣٤ او نوري خبري ٣٤

دَ یهوشافاط اول او آخر چه دي دَ یاهو بنِ حنانِي په
خبرونو کښ چه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو په کتاب کښ
۳۵ داخل کړي شه لیکلي دِي ۳۵ پس له دغه یهوشافاط
بادشاه دَ یهوداه له اخزیاه بادشاه دَ اسرائیل سره
۳۶ چه بدکار وه میل وکړ ۳۶ او له دغه سره ئي دَ جهازونو
دَ جوړولو په کار کښ میل وکړ چه ترشیش ته لاړ شي
۳۷ نو دوي په عصیون جابر کښ جهازونه جوړ کړل ۳۷ نو
الیعازر زوي دَ دودواهو دَ مریشي دَ یهوشافاط په
خلاف نبوّت وکړ و ئي ویل دَدي دَپاره چه تا دَ اخزیاه
سره میل وکړ نو خداوند ستا کار پرزولي دَي نو هغه
جهازونه مات شول او دَ ترشیش دَ تللو دَپاره قابل نه شول

# یو ویشتم باب

۱ آ او یهوشافاط له خپلو پلرونو سره ځملاست او دَ داؤد
په ښهر کښ له خپلو پلرونو سره ښخ کړي شه او دَده
۲ په ځاي دَده زوي یهورام بادشاه شه ۲ او ورلره وروڼړه
دَ یهوشافاط زامن وُو عزریاه او یحیئیل او زکریاه او
عزریاهو او میخائیل او شفتیاه دا ټول زامن دَ یهوشافاط
۳ بادشاه دَ اسرائیل وُو ۳ او دَدوي پلار دوي ته ډیر
بخششونه له سپینو او له سرو زرو او له تحفي سره
له مضبوطو ښهرونو په یهوداه کښ ورکړل لیکن بادشاهي
۴ ئي یهورام ته ورکړه ځکه چه هغه مشروه ۴ او یهورام
دَ خپل پلار په بادشاهئ باندِ قایم شه او ځان ئي ټینګ
کړ او ټول وروڼړه خپل ئي په توري قتل کړل او هم څو
۵ کسان له سردارانو دَ اسرائیل ۵ او یهورام دَ دوه دیرشو

کالو وه دَده په بادشاه کیدلو کښ او اته کاله ئې په
اورشلیم کښ بادشاهي وکړه ٦ او دی دَ اسرائیل دَ ٦
بادشاهانو په لاري تَه لکه چه دَ اخاب کور کول ځکه چه
دَ اخاب لُور دَده ښځه وه او ده او هغه چه دَ خداوند
په ستڕګو کښ بد وُو وئې کړل ٧ او خداوند نه غوښت ٧
چه دَ داؤد کور نیست کړي دَ هغه عهد دَپاره چه ده
دَ داؤد سره کړي وه او لکه هغه چه ده امر وکړ چه
ده ته او دَده زامنو ته هتولي ورځي چراغ ورکړي ٨ او دَده ٨
په ورځو کښ آدوم دَ یهوداه دَ لاس له لاندِ نه یاغي
شه او په خپلو ځانونو ئې یو بادشاه مقرّر کړ ٩ او ٩
یهورام له خپلو سردارانو سره او له هتولو چه ورسره
وُو پوري شه او دَ شپي پورته شه او آدوم چه په ده
او دَ کاډیو په سردارانو ځوخیدلي وُو وئې واهه ١٠ نو آدوم ١٠
دَ یهوداه دَ لاس دَ لاندِ نه تر دي ورځي پوري یاغیان شول
او هغه وقت لبنه هم دَده دَ لاس دَ لاندِ یاغي شه ځکه
چه ده یهوه الله دَ پلرونو خپلو پرېښود ١١ او ده هم دَ یهوداه ١١
په غرونو کښ لوړ مکانونه جوړ کړل او دَ اورشلیم اوسیدونکي
ئې زناکاران کړل او یهوداه ئې وبیزول ١٢ او ده ته له ایلیاه ١٢
نبي نه یو خط راغي چه ویل ئې چه یهوه الله ستا دَ پلار
داؤد داسي وائي په دي سبب چه ته دَ خپل پلار یهوشافاط
په لارو او دَ آسا بادشاه دَ یهوداه په لارو لا نه ړي-
١٣ بلکه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو په لاري تللي يي او یهوداه ١٣
او دَ اورشلیم اوسیدونکي دِ زانیان کړل لکه دَ اخاب دَ
کور زنا او خپل ورونړه دِ هم قتل کړل دَ خپل پلار له کور
نه چه له تا نه بهتر وُو ١٤ ګوره یهوه به ستا امّت او ١٤

ستا زامن او ستا ښځي او ستا ټول مال مواشي په لوئ
۱۵ وبا ووهي ۱۵ او ته به په ډيرو رنځونو دَ کلمو په مرض گرفتار
شي تر دې حده چه دَ مرض په سبب به دِ کلمي وزي
۱۶ ورځ په ورځ ۱۶ او خداوند په يهورام باندِ روح دَ فلسطيانو
او دَ هغو عربو چه دَ کوش په څنګ کښ دِي ولمساوه
۱۷ ۱۷ او هغوي يهوداه ته وختل او په کښ ئي چاوُد وکړ او
هغه ټول مال موبښي ئي په بند بوتلل چه دَ بادشاه په
کور کښ موندلي شول او هم زامن دَده او ښځي دَده او
ورته زوي پاتي نه شه مګر يهوآحاز کشري دَده دَ زامنو
۱۸ ۱۸ او پس له دي ټولو خداوند دي په کلمو کښ وواهه
۱۹ په داسي رنځ چه شفا ئي نه وه ۱۹ او تر يو څو مدي پوري
ورځ په ورځ داسي وه چه دَ دوو کلونو په آخر کښ دَ
رنځ په سبب کلمي ئي ووتلي او په بدو رنځونو کښ مړ
شه او دَده امّت دَده دَپاره سوز دَده دَ پلار دَ بلونکي
۲۰ سوز په شان جوړ نه کړ ۲۰ او چه دَي بادشاه کيده دَ
دوه ديرشو کالو وه او په اورشليم کښ ئي اته کاله بادشاهي
وکړه او بي له خوښئ نه لاړ شه او دوي دَ داوُد په
ښهر کښ ښخ کړ ليکن نه دَ بادشاهانو په قبرونو کښ *

## دوه ويشتم باب

۱ ۱ او دَ اورشليم اوسيدونکو اخزياه دَده وړوکي زوي
دَده په ځاي بادشاه کړ ځکه چه ټول مشران ئي هغي
داړي قتل کړل چه له عربو سره ډيري ته راغلي وه نو
اخزياه زوي دَ يهورام دَ يهوداه بادشاه بادشاهي وکړه
۲ ۲ او اخزياه چه بادشاه شه دَ دوه څلويښتو کالو وه او

بو کال يُ په اورشليم بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نوم
۳ عثلياه لُور دَ عامري وه ۳ او دي هم دَ اخياب دَ کور
په لارو تَه ځکه چه دَده مور دَ شرارت دَپاره دَده صلاحکاره
۴ وه ۴ نو ده دَ خداوند په سترګو کښ دَ اخياب دَ کور په
شان بد وکړل ځکه چه پس له مرګ دَده دَ پلار دوي
۵ ورله صلاح کاران وُو دَده دَ نيست کولو دَپاره ۵ او دي دَ
هغو په مصلحت تَه او له يهورام بن اخياب بادشاه دَ
اسرائيل سره لاړ شه چه په راموت جلعاد کښ له حزائيل
بادشاه دَ آرام سره جنګ وکړي او آراميانو يهورام ژوبل کړ
۶ ۶ نو دي دَ ځان رغيدلو دَپاره وګرزيده په يزرعيل کښ په
سبب دَ هغو زخمونو چه په رامه کښ يُ زخمي کړي وه چه ده
له حزائيل بادشاه دَ آرام سره جنګ وکړ او عزرياه بن يهورام
بادشاه دَ يهوداه دَ يهورام بن اخياب په يزرعيل کښ دَ
۷ ليدلو دَپاره ورکوز شه ځکه چه په رنځ وه ۷ نو دَ الله له
طرف نه دَ اخزياه دربول وشول چه دي يورام تَه راغي او
چه دي راغي نو له يهورام سره ياهو بن نمسي تَه ورووت
هغه چه يهوه دَ اخياب دَ کور دَ پريکولو دَپاره مسحه کړي وه
۸ ۸ او چه ياهو دَ اخياب په کور حکم کاوه نو دَ يهوداه
سرداران او دَ اخزياه دَ ورونړو زامن چه دَ اخزياه خدمت
۹ يُ کاوه وموندل او قتل يُ کړل ۹ او ده اخزياه ولټاوه
او وئي نيوه او ده په سامره کښ ځان پټاوه او دي ئي
ياهو تَه راوست او مړ ئي کړ او ښخ ئي کړ ځکه چه دوي
ويل چه دا دَ يهوشافاط زوي دَي هغه چه په خپل ټول
زړه سره يُ يهوه لټاوه او دَ اخزياه دَ کور قوّت نه وه
۱۰ چه بادشاهي ټينګه کړي ۱۰ او چه عثلياه مور دَ اخزياه

ولیدل چه دَ دي زوي مړ شه نو پورته شوه دَ یهوداه
۱۱ دَ کور ټول شهزادګان ئې نابود کړل ۱۱ نو یهوشبعي لُور دَ
بادشاه یوآش زوي دَ اخزیاه واخست او دَ بادشاه دَ
زامنو له منځ نه چه وژلي شول پټ ئې کړ او دغه او
دَ دغه دائي ئې په خوبګاه کښ کښېنول او یهوشبعي دَ یهورام
بادشاه لُور دَ یهویدع کاهن ښځي هغه پټ کړ چه دغه
دَ اخزیاه لُور وه دَ عتلیاه له مخ نه او هغه ئې مړ نه کړ
۱۲ ۱۲ او هغه له دوي سره په بیت‌الله کښ شپږ کاله پټ
وه او عتلیاه په ملک بادشاهي کوله ✢

# دري ویشتم باب

۱ ۱ او په اوم کال یهویاداع خپل ځان تکړه کړ او له خپل
ځان سره ئې په وعدي کښ سرداران دَ سلونو واخستل
یعني عزریاه بن یروحام او اسمٰعیل بن یوحانان او عزریاه
بن عوبید او معسیاه بن عدایاه او ایشافاط بن زکري
۲ ۲ او په یهوداه کښ وګرزیدل او لاویان ئې له ټولو
ښهرونو دَ یهوداه جمع کړل او پذري سرداران دَ
۳ اسرائیل او اورشلیم ته ورغلل ۳ او ټول جماعت په
بیت‌الله کښ له بادشاه سره وعده وکړه او ده هغو
ته و ویل ګوریٔ زوي دَ بادشاه بادشاهي کوي لکه چه
۴ خداوند دَ بني داؤد په باب خبره وکړه ګوریٔ ۴ دا هغه کار
دَی چه تاسي به ئې کوئ دریمه به له تاسي کاهنانو او
لاویانو نه چه په سبت کښ ننوزئ دَ استانو دروانان
۵ به وي ۵ او دریمه به دَ بادشاه په کور کښ وي او دریمه
به دَ بنیاد په دروازي کښ وي او ټول اُمّت دِ دَ بیتِ

۶ یهوه په غولي کښې وِي ۶ او بیت یهوه ته دِ بې له کوهنانو
او بې له لاویانو چه خدمت کوِي هېڅوک دِ نه ننه وزِي
او دوي دِ ننوزِي ولې چه دوي پاک دِي او ټول اُمت دِ دَ
۷ یهوه ساتنه وساتِي ۷ او لاویان دِ هر یو وسله په خپل لاس
کښې هر یو دِ دَ بادشاه گِرداگِرد گرزِي او هر یو چه کور ته
ننوزِي و دِ وژلې شِي او تاسي په ننوتلو او وتلو کښې له
۸ بادشاه سره شئ ۸ نو لاویانو او ټول یهوداه موافق دَ هرهغه
څه چه یهویاداع کوهین ورته وفرمایل وئې کړل او هر سړِي
خپل کسان واخستل هغوي چه په سبت کښې ننوتل له
هغوي سره چه په سبت کښې وتونکِي وُو ځکه چه یهویاداع
۹ کوهین خلقو ته رخصت ورنه کړ ۹ او یهویاداع کوهین دَ
سلونو سردارانو ته دَ داؤد بادشاه نېزې او ډالونه او
۱۰ کنکلونه چه په بیت الله کښې وُو ورکړل ۱۰ او ټول اُمت ئې
ودراوه او هر یوه خپله وسله په لاس دَ کور په ښئ اوړې
دَ کور تر کینړِي اوړې پورې گِرداگِرد په مذبح او په کور چار
۱۱ چاپېره دَ بادشاه ۱۱ او دَ بادشاه زوي ئې راوِیوست او تاج ئې
پرِي کېښود شاهدِي ئې ورکړه او بادشاه ئې کړ او یهویاداع
او دَده زامنو مسح کړ و ئې وېل چه بادشاه دِ ژوندي
۱۲ وِي ۱۲ او عتلیاه آواز دَ اُمت واورېده چه ځغلېدونه ئې وُهل
او دَ بادشاه مدحه ئې کوله نو خلقو ته بیتِ یهوه ته ننوتله
۱۳ ۱۳ او وئې کتل او گوره چه بادشاه خپلې ستنې څخه په
مدخل ولاړ دِي او سرداران او توريئ غږوونکِي بادشاه څخه او ټول
اُمت دَ زړګي خوښِي کوله او توريئ ئې وغږولې او سرودگران
دَ سرود له کالبو سره او معلمان دَ ثنا وُو نو عتلیاه خپلې
۱۴ جامې څیرې کړِې او وئې وېل چه دا فتنه دَه فتنه ۱۴ نو

يهوياداع هغه كوهين هغه سرداران دَ سلونو چه په
لښكر ساتونكي وُو وويستل او ورته ئې وويل چه دغه باهر
صفونو ته وباسئ او هغه چه دَدي پيروي كوي په توري دِ
ووژلي شي ځكه چه هغه كوهين وويل چه دغه دَخداوند
۱۵ په كور كښ مه وژنئ ۱۵ او هغو په دي لاس واچاوه او
چه دَ آسونو دَ دروازي ومدخل ته راغله چه دَ بادشاه كور
ځنګه دَه هلته ئې ووژله
۱۶ ۱۶ نو يهوياداع دَ خپل ځان په مينځ او دَ ټول اُمّت
په مينځ او دَ بادشاه په مينځ كښ يو عهد وتاړه چه دوي
۱۷ په دَ يهوه دَپاره اُمّت وِي ۱۷ او ټول اُمّت دَ بعل وكور ته
ننوت او هغه ئې ونړاوه او دَدغه مذبحونه او بتان ئې مات
كړل او دَ بعل كاهن متّان ئې دَ مذبح دَ وړاندِ قتل كړ۔
۱۸ ۱۸ او يهوياداع ئې دَ بيت يهوه واكدار مقرّر كړ دَهغو كوهيانو
او دَ هغو لاويانو په لاس چه داؤد بيت يهوه له ويستلي
وُو دَپاره دَ خيژولو دَ سيزونكو قربانيو دَ يهوه لكه چه دَ موسىٰ
په نوريت كښ ليكلي شوي دِي په خوښئ او په سرود سره
۱۹ موافق دَ حكم دَ داؤد ۱۹ او ده دربانان دَ بيت يهوه په دروازو
۲۰ ودرول چه په هيڅ خبري كښ ګنده ورننه نه وزي ۲۰ او ده
دَ سلونو سرداران او اشرافان او دَ اُمّت حاكمان او ټول خلق
دَ زمكي واخستل او بادشاه ئې دَ بيتِ يهوه نه كوز كړ او دَ
اعلىٰ دروازي له مينځ نه دَ بادشاه كورته ننوتل او بادشاه ئې
۲۱ دَ بادشاهئ په تخت كښيناوه ۲۱ نو ټول خلق دَ زمكي خوشحال
شه او ښهر په آرام شه او عتليااه ئې په توري ووژله ❊

## څلور ويشتم باب

۱ ۱ او يوآش چه بادشاد شه دَ اووه كالو وه او څلويښت

کاله ئې په اورشليم بادشاهي وکړه او دَده دَ مور نُوم
ضبياه وه دَ بير سبع ۲ او يوآش دَ خداوند په سترګو کښې ۲
راستي کوله دَ يهوياداع کوهين په ټولو ورځو کښې ۳ او يهوياداع ۳
ده ته دوه ښځې واخستې او زامن او لوڼړه ئې وزيږيدل ۴ او ۴
پس له دې نه داسې وشول چه دَ يوآش په زړه کښې وُو چه
بيت يهوه نوې کړي ۵ نو ده کوهينان او لاويان جمع کړل ۵
او ورته ئې وويل چه دَ يهوداه ښهرونو ته ورو ځئ او له
ټوله اسرائيل روپئ جمع کړئ دَپاره دَ مرمت کولو دَ بيت الله
له يوه کال نه تر بله کاله پورې او تاسې په دې کار تلوار
وکړئ او لاويانو تلوار و نه کړه ۶ نو بادشاه يهوياداع سردار ۶
راوباله او ورته وئ ويل چه ته ولې له لاويانو طلب
نه کوې چه له يهوداه او له اورشليم نه دَ شهادت دَ خيمې
دَپاره هغه خراج چه موسىٰ بنده دَ خداوند او جماعت دَ
اسرائيل مقرّر کړې دې راوړي ۷ ځکه چه دَ عتلياه هغې ۷
شريرې زامنو بيت الله غُرزولې وَه او ټول پاک څيزونه دَ
بيت يهوه ئې دَ بعلونو دَپـاره ورکول ۸ او بادشاه حکم وکړ ۸
او هغوي يو صندوق جوړ کړ او دَ بيت يهوه په دروازې
کښې ئې باهر کيښود ۹ او په يهوداه او په اورشليم کښې ۹
ئې ناره وکړه چه خداوند ته دِ خراج دَ موسىٰ بنده دَ
خداوند چه په اسرائيل باندِ په بيابان کښې وه راوړي ۱۰ نو ۱۰
ټول سرداران او هغه ټول اُمّت خوشحال شول او رائې وړل
او په صندوق کښې ئې واچول څو چه ختم ئې کړ ۱۱ او هغه ۱۱
وقت چه صندوق دَ لاويانو په لاس دَ بادشاه واکدارانو
ته راوړلې شه او چه دوي به وليدل چه روپئ ډيرې دي
نو داسې به وُو چه دَ بادشاه کاتب او واکدار دَ سردار

کاهن به راته هغه صندوق به ئي تش کاوه او بیا به
ئي بووړ او په هغه ځاي به ئي پسننه کیښود ورځ په
ورځ به ئي داسي کار کاوه او ډیري روپئ ئي را ټولولي
۱۲ ۱۲ او هغه به بادشاه او یهویاداع دَ بیت یهوه دَ
خدمت دَ کاریګرئِ وکار کونکو ته ورکولي او دغو به
سنګتراشانو او ترکاڼانو ته مزدوري ورکوله چه بیتِ
یهوه نوي جوړ کړي او دَ اوسپني او دَ زیړو تراشانو ته
۱۳ هم چه بیتِ یهوه مضبوط کړي ۱۳ نو کاردارانو کار وکړ
او دَدوي لاسونو کاریګرو مرمت وکړ او بیت الله ئي په
۱۴ خپل ثابت کیدلو کښ ودراوه او استوارئي کړ ۱۴ او چه
پوره ئي کړ نو هغه نوري روپئ ئي دَ بادشاه او دَ یهویاداع
دَ وړاندِ راوړي او دوي دَ بیتِ یهوه دَپاره اوښي جوړ
کړل لوښي دَ خدمت او دَ قرباني ځیژولو او ځمڅي او لوښي
دَ سرو او دَ سپینو او دوي به په بیتِ یهوه کښ دَ
۱۵ سیزلو قربانئِ مدام ځیژولي ښولي ورځي دَ یهویاداع ۱۵ او
یهویاداع زوړ شه او په ورځو موړ شه او مړ شه او
۱۶ دي په خپل مړ کیدلو دَ یو سل دیرشو کالو وه ۱۶ او هغوي
دَي دَ داؤد په ښهر کښ له بادشاهانو سره ښخ کړ
ځکه چه ده په اسرائیل کښ او له الله او دَده له کور
۱۷ سره نیک کار وکړ ۱۷ او پس له مرګ دَ یهویاداع دَ یهوداه
سرداران راغله او بادشاه ته ئي سجده وکړه نو هغه
۱۸ بادشاه دَدوي واوریدل ۱۸ او دوي بیتِ یهوه الله دَ پلرونو
دَدوي پریښود او دَ اشیریانو او دَ بتانو عبادت ئي وکړ
نو په یهوداه او په اورشلیم دَدوي دَدي ګرموالي په
۱۹ سبب قهر وه ۱۹ او ده هغوي ته نبیان واستول چه

دوي خداوند ته وجاروزي او هغو دوي ته شاهدي وکړه
۲۰ او دوي نه غُبنتل ۲۰ او دَ الله له روح زکریاه زوي دَ
یهویاداه هغه کوهین ملبس شه او دي په اُمّت باندي
ودریده او ورته ئې ووېل چه هغه الله داسي وائي چه
تاسي ولي له فرضونو دَ یهوه پوري وزئ او تاسي به کامیاب
نه شئ ځکه چه تاسي یهوه پرېښودلي دَي نو تاسي ئې هم
۲۱ پرېښودلي یئ ۲۱ او هغوي په ده یاغيتوب کاوه او په کاڼو
ئې سنګسار کړ دَ بادشاه په حکم دَ بیتِ یهوه په غولي
۲۲ کښې ۲۲ او یوآش هغه بادشاه دَ هغه مهرباني چه دَده
دَ پلار یهویاداع له ده سره کړې وه په یاد نه کړه بلکه دَده
زوي ئې قتل کړ او دغه دَ مرګ په وقت ووېل چه یهوه دِ
۲۳ ووینې او بدله دِ واخلي ۲۳ او دَ کال په دائرې کښې په ده
باندِ دَ آرام لښکر وخوت او یهوداه او یروشلیم ته راغله او
له اُمّت ئې واړه سرداران دَ اُمّت هلاک کړل او ټول لوټ
۲۴ دَدوي ئې دَ دمشق بادشاه ته واستاوه ۲۴ ځکه چه دَ آرام
لښکر په لږ څه کسانو سره ورغې او یهوه دَدوي والاس
ته بې‌حده لوي لښکر ورکړ ځکه چه دوي یهوه الله دَ پلرونو
دَدوي پرېښود او هغوي په یوآش باندِ عدالت جاري کړ۔
۲۵ او چه ور نه تلل ولي چه دي ئې له ډېرو مرضونو سره پرېښود
دَده مریونو په ده باندِ یاغيتوب وکړ دَ یهویاداع دَ هغه کوهین
دَ زامنو دَ خون دَپاره او په خپل کټ باندِ ئې مړ کړ او دَي مړ
شه او دَ داؤد په ښهر کښې ئې ښخ کړ لیکن نه دَ بادشاهانو
۲۶ په قبرونو کښې ۲۶ او هغه چه په ده ئې ځانونه یاغیان کړل
دغه دِي داباد ابنِ شمعه هغه عمونۍ او یهوزاباد ابن شمریت
۲۷ هغه موابي ۲۷ او دَده دَ زامنو او دَ هغه ډېر بار چه په ده

باندِ وه او دَ بيت الله دَ بنياد كيښول كوره دَغه دَ بادشاهانو
دَ تفسير په كتاب كښ ليكلي دِي او دَده زوي امصياه دَده
په ځاي بادشاه شه *

## پنځه ويشتم باب

آ چه امصياه بادشاه كيده دَ پنځه ويشتو كالو وه او نه ويشت ۱
كاله په اورشليم كښ بادشاه شه او دَده دَ مور نوم
يهوعدانه دَ اورشليم وه ۲ او ده دَ خداوند په ستركو ۲
كښ راستِي وكړه ليكن نه په كامل زړه سره ۳ او داسي وشوه ۳
چه په ده باندِ بادشاهي ټينګه شوه نو هغه مريونه چه دوي
دَ بادشاه پلار وژلي وه قتل ئي كړل ۴ او دَ هغو زامن ئي ۴
مړه نه كړل لكه چه دَ موسىٰ دَ توريت په كتاب كښ ليكلي
دِي چه خداوند فرض كړه و ئي ويل چه نه دِ پلرونه مړه
كړي شي دَپاره دَ زامنو او نه دِ زامن مړه كړي شي دَپاره
دَ پلرونو بلكه هر سړي دِ په خپلي خطا مړ كړي شي ۵ او ۵
امصياه يهوداه جمع كړل او دوي ئي دَ پدرِي خيلخانې په
موافق ودرول سرداران دَ زركونو او سرداران دَ سلګونو
په ټول يهوداه او بنيامين كښ او دوي شل كلني او له
دَغه نه پاس ئي وشميرل او هغوي ئي دري سوه زره غورښ
جنګ ته وتونكي: آخستونكي دَ برچو او دَ كنكلونو بيامُندل-
۶ او سل زره جبّاران دَ قوّت ئي په سلو قنطارو دَ سپينو ۶
زرو مزدوران كړل ۷ او ده ته يو مردِ الله ورغي ويل ئي ۷
اي بادشاه له تا سره دِ دَ اسرائيل لښكر نه راځي ځكه
چه يهوه له اسرائيل سره نه دي يعني له ټول بني افرائيم
سره ۸ او كه نه ځي نو كار كوه او جنګ ته ټينګ شه ځكه ۸

چه الله به دِ دَ دُښمنانو دَ وړاندِ تِندک وخوروِي څکه
چه قدرت په الله کښِ شته دَي دَ مددکارِئ ورکولو
او دَ تِندک خورولو دَپاره ۹ نو اَمصیاه هغه مردِ الله ته ۹
ووِيل چه زه دَ هغو سلو قنطارو دَپاره چه دَ اسرائيل
وداړِي ته مِ ورکړِي دِي څه وکړم؟ او هغه مردِ الله
ووِيل چه شته دَي يهوه لره له دي نه زيات چه تا لره
درکړي ۱۰ نو اَمصياه هغه داړه چه ده ته له اَفرائيمَ راغلي ۱۰
وه ګوښي کړه چه خپلو ځايونو ته لاړه شِي او دَ هغو
خپکِي په يهوداه بېحده ګرمه شوه او خپلو ځايونو ته
په ګرمِئ دَ خپکِئ کښِ وجاروتل ۱۱ ليکن اَمصياه ځان تکړه ۱۱
کړ او خپل اُمّت ئِ بوت او دَ مالګي خوړ ته ورغي او له
بنِي شاعير ئِ لس زره ووهل ۱۲ او بنِي يهوداه ورنه ۱۲
لس زره په بند ژوندِي بوتلل او دَ هغي کمر څوکي ته ئِ
بوتلل او دَ څوکي له سره ئِ وغورزول او هغوئ واړه
ريزمريز شول ۱۳ او دَ هغه داړِي زلمِن چه دَ اَمصياه ۱۳
سره دَ جنګ له تللو نه را وجاروتل دَ يهوداه په ښهرونو
کښِ ئِ حمله وکړه له سامري نه تر بيتِ حورونه پورِي او
له هغه ئِ درِي زره ووهل او ډير لوټ ئِ بوت
۱۴ او چه اَمصياه دَ ادوميانو له وهني راغي داسِي ۱۴
وشول چه دَ بنِي شعير خدايان ئِ راوړل او دوئ ئِ دَ
خپلو خدايانو دَپاره ځان ته ودرول او دَ هغو دَ وړاندِ
ئِ سجدِي وکړِي او خوشبوئي ئِ ورته وسيزلي ۱۵ نو دَ يهوه ۱۵
خپکِي په اَمصياه ګرمَ شوه او ده ته ئِ يو نبِي واستاوه
او ورته ئِ ووِيل چه تا ولِي دَ هغو قومونو خدايان ولټول
چه خپل قوم ئِ ستا له لاس خلاص کړِي نه شه ۱۶ او ۱۶

چه ده لا خبري ورته کولي نو هغه ورته وويل چه ته
مو بادشاه لره صلاح کار کړي يي پريږده ځله دِ هغوي
نا ووهي نو هغه نبي پرېښود او و ئې ويل چه زه پوه
شوم چه الله ستا په هلاکت صلح کړي دَه ځکه چه تا
١٧ داکړي دِي او ځما صلاح دِ وا نه اوريدله ¶ ١٧ نو امصياه
بادشاه دَ يهوداه مصلحت وکړ او يوآش بن يهواحاز بنِ
ياهو بادشاه دَ اسرائيل ته ئې واستاوه و ئې ويل راشه
١٨ چه مخامخ سره ووينو ١٨ نو يوآش بادشاه دَ اسرائيل امصياه
بادشاه دَ يهوداه ته واستاوه و ئې ويل چه هغه غنه
چه په لبنان کښ دَه هغه لمنځي ته چه په لبنان کښ
دَه واستاوه ويل ئې چه خپله لور ځما ځوي ته دَ ښځي
دَپاره راکړه نو يو ځاندار دَ ورشو چه په لبنان کښ وه تير
١٩ شه او هغه غنه ئې پايمال کړه ١٩ ته هم وايي گوره تا
آدوم وواهه نو ته خپل زړه اوچت کړي يي چه فخر وکړي
اوس په خپل کور کښ تم شه ولي په بلا سره ځان غرغره
٢٠ کوي چه ته به پريوزي ته او يهوداه د‌رسره ٢٠ او امصياه
وانه وريدل ځکه چه دا دَ الله له لوري وه چه دَي دَ هغو
و لاس ته ورکړي ځکه چه دوي دَ آدوم خدايان ولټول -
٢١ ٢١ او يوآش بادشاه دَ اسرائيل وخوت او ده او امصياه بادشاه
دَ يهوداه مخونه وليدل په بيت شمس کښ چه دَ يهوداه دي
٢٢ ٢٢ او يهوداه دَ اسرائيل له مخې شکست وخوړ او هر سړي
٢٣ خپلي خپلي خيمي ته وتښتيد ٢٣ او بادشاه دَ اسرائيل يوآش
بادشاه دَ يهوداه امصياه بنِ يوآش بنِ يهواخز په بيت
شمس کښ ونيوه او اورشليم ته ئې بوت او دَ اورشليم ديوال
ئې دَ افرائيم له دروازي نه دَ کونبي تر دروازي پوري چه

۲۴ څلور سوه هاتي وه و نیراوه ۲۴ او ټول سره او سپین
زر ئي واخستل او ټول لوښي چه په بیت الله کښ وُو
او دَ عوبیدادوم سره او دَ بادشاه دَ کور خزاني او بني
۲۵ یرغمال او سامري ته وجاروت ۲۵ او امصیاه بن یواش
دَ یهوداه بادشاه پس له مرګَ دَ یوآش بن یهواحاز
۲۶ بادشاه دَ اسرائیل پنځلس کاله ژوندي وه ۲۶ او نوري خبري
دَ امصیاه اوّلي او آخري دَ یهوداه او دَ اسرائیل دَ
۲۷ بادشاهانو په کتاب کښ لیکلي شوي نه دِي څه ؟ ۲۷ او
له هغه وقتَ چه امصیاه دَ یهوه له پیرويِ نه ګوښي
شه په اورشلیم کښ باغیانو وربانْدِ سازش وکړ
نو دَي لخیش ته وتښتیده او هغو په ده پسي و لخیش
۲۸ ته واستول او هلته ئي مړ کړ ۲۸ او په آسونو ئي یوړته
کړ او دَ ده له پلرونو سره دَ یهوداه په ښهر کښ ئي ښخ کړ۞

## شپږ ویشتم باب

۱ ۱ او ټول اُمّت دَ یهوداه عزیاه ونیوه او هغه دَ شپاړسو
کالو وه او دَده دَ پلار امصیاه په عوض کښ ئي بادشاه
۲ کړ ۲ ده ایلوث بنا کړ او پس له هغه چه بادشاه له
خپلو پلرونو سره څملاست هغه ئي بیرته یهوداه ته وګرزاوه
۳ ۳ او عزیاه دَده په بادشاه کیدلو دَ شپاړسو کالو وه
او دو پنځوس کاله ئي په اورشلیم کښ بادشاهي وکړه او
۴ دَده دَ مور نوم یکلیاه دَ اورشلیم وه ۴ او ده دَ خداوند
په سترګو کښ راست کار وکړ موافق دَ هر هغه څه چه
۵ دَده پلار امصیاه کړي وُو ۵ او ده دَ زکریاه په ورځو کښ
چه دَ الله په رؤیاؤ کښ پوهان وه دَ الله دَ لټولو دَپاره

شه او دَده دَ بهوه دَ لټولو په ورځو کښې هغه الله دې
۶ کامیاب کاوه ۶ او دې ووت او له فلسطیانو سره وجنګیده
او دَ جتَه دیوال ئې ونړاوه او دیوال دَ یبنَه او دیوال دَ
اشدود او دَ اشدود او دَ فلسطین په مینځ کښې ئې ښهرونه
۷ بنا کړل ۷ او الله ده ته مددګارې ورکړه په فلسطیانو باندې
او په هغو عربو باندې چه په جوربعل باندې اوسېږي او په
۸ هغو معونیانو ۸ او عمونیانو عزیاه ته پیشکشې ورکړه او
دَده نُوم دَ مصر تر ننه وتنې پورې خور شه ځکه چه ډیره
۹ تکړائې ئې وکړه ۹ او عزیاه په اورشلیم کښې برجونه بنا کړل
کونجې دروازې ځنګه او دَ خوړ دروازې ځنګه او دَ کونجونو او
۱۰ مضبوط ئې کړل ۱۰ او ده په بیابان کښې برجونه بنا کړل او
ډیر کوهې ئې وکندل ځکه چه دَده په کوز میدان او په
میدان کښې ډیر څاروې وُو او دهقانان او دَ انګورو
باغوانان په غرونو کښې او په کرمل کښې ځکه چه ده په
۱۱ دهقانئ مینه کوله ۱۱ او دَ عزیاه دَ جنګیالیو لښکروه چه
جنګ ته په داړو به دَ جنګیدلو دَپاره وتل موافق
دَ شمار دَ سان اخستلو دَدوې په لاس دَ یعیئیل کاتب
او دَ معسیاه ناظم دَ حننیاه په لاس یو له سردارانو دَ
۱۲ بادشاه چه وه ۱۲ او دَ پدرې سردارانو کُل شمار دَ جبّارانو
۱۳ دَ قوّت دوه زره او شپږ سوه وه ۱۳ او دَدوې په لاس
لښکر دَ قوّت درې سوه زره او اوه زره او پنځه سوه
جنګیان په قدرت دَ قوّت سره چه بادشاه ته په دښمن باندې
۱۴ مددګارې ورکړې ۱۴ او عزیاه دوې ته دَ ټول لښکر دَپاره
ډالونه او برچې او خولونه او زغرې او لیندې او دَ مچوغنو
۱۵ کاڼې ساز کړل ۱۵ او ده په اورشلیم کښې دَ هنرمندو له هنر

نه منجنيقونه جوړ کړل چه په برجونو او په کونجو باندِ
غشي او لوي کاڼي ولي او دَده نوم تر لري پوري خور شه
ځکه چه دَده مددګارِي په عجب شان سره وشوه څوچه
دي تکړه شه
۱۶ ۱۶ او چه دي تکړه شه نو زړه ئ دَ هلاکت دَپاره
هسک شه او دَ خداوند الله نحپل خيانت ئ وکړه او دَ
خداوند هيکل ته ننوت چه دَ بخور په مذبح باندِ بخور
۱۷ وسيزي ۱۷ او په ده پسي عزرياه هغه کوهين ننوت او
۱۸ ورسره اتيا کوهينان دَ خداوند چه زاملن دَ قوّت وُوه ۱۸ او
دوي په خلاف دَ عزّياه بادشاه ودريدل ورته وئ ويل
چه اي عزّياه تا لره نه دِي چه خداوند ته بخور سوزوي
بلکه کوهينانو بني هارون لره چه دَ بخور سيزلو دَپاره پاک
کړي شوي دِي له مقدس ووزه ځکه چه تا خيانت وکړه او
۱۹ را به دَ خداوند الله له طرفَ تا لره عزّت نه شي ۱۹ او
عزّياه خپه شه او دَده په لاس کښ بخوردان وه دَ بخور
سوزلو دَپاره او دَده په خپه کيدلو له کوهينانو سره په
وچولي کښ ئ پيس وخوت دَ کوهينانو دَ وړاندِ په بيت
۲۰ يهوه کښ دَ بخور دَ مذبح په څنګ کښ ۲۰ نو عزرياه هغه
سردار کوهين او ټولو کوهينانو ورته نظر وکړ او ګوره چه
دَده په وچولي کښ پيس وه نو هغو له هغه ځاي نه په
تړ وشاړه او هغه هم چه ده بخپله وتلو ته دَ ځان
۲۱ شتابي وکړه ځکه چه خداوند وهلي وه ۲۱ او عزياه هغه
بادشاه دَده دَ مرګ تر ورځي پوري پيسَي وه او په هغه
مرضخاني کښ پيسيَ اوسيده ځکه چه له بيت يهوه نه
خارج شه او دَده زوي يوثام دَ بادشاه په کور باندِ وه

۲۲ دَ زمکي پہ اُمّت ئې حکم کاوه ۲۲ او نوري خبري دَ عزیاه
هغه اوّلي او هغه اُخري اشعیاه بن اموص هغې نبي
۲۳ لیکلي دِي ۲۳ بیا عزیاه له خپلو پلرونو سره ځملاست او
دَ هدیري په پټي کښ ئې ښخ کړ هغه چه دَ بادشاهانو
دي ځکه چه دوي ویل چه دي پیسَي دَي او دَده زوي
یوتام دَده په ځاي بادشاهِي وکړه ❊

# اوه ویشتم باب

۱ آ او یوتام چه بادشاه شه دَ پنځه ویشتو کالو وه او
شپاړس کاله ئې په اورشلیم کښ بادشاهي وکړه او دَده
۲ دَ مور نوم یروشه لور دَ صادوق وه ۲ او ده دَ خداوند
په سترګو کښ راستِي وکړه موافق دَ هغو ټولو چه دَده
پلار عزیاه وکړلِ مګر دَي دَ یهوه هیکل ته ننه نه وت او
۳ هغه اُمّت لا تر اوسه هلاکت کاوه ۳ او ده هغه عالیشان
دروازه دَ بیت یهوه بنا کړه او هغه دَ عُفل په دیوال
۴ ډیره آبادِي وکړه ۴ او دَ یهوداه په کوهستان ئې ښهرونه
بنا کړلِ او په ځنګلونو کښ ئې بارِي او برجونه بنا کړلِ او
دَ عمون له بادشاه سره ئې جنګ وکړ او پرِي زوراور شه
۵ ۵ او ده ته بني عمون په دغه کال کښ سل قنطاره سپین
زر او لس زره کُره غنم او لس زره دَ اوربوشو ورکړلِ
دا هغه دِي چه بني عمون ورکرزول او په دویم او دریم کال
۶ کښ ۶ او یوتام تکړه شه ځکه چه ده خپلي لاري دَ خداوند
۷ الله خپل دَ وړاندِ تیاري کړي ۷ او نوري خبري دَ یوتام
او دَده ټول جنګونه او دَده لاري خو دَ اسرائیل او دَ
۸ یهوداه دَ بادشاهانو په کتاب کښ لیکلي دِي ۸ او چه

دي بادشاه شه دَ پنځه ویشتو کالو وه او شپاړس کاله
ئې په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه ۹ او یوتام له خپلو ٩
پلرونو سره څملاست او دې ئې دَ داؤد په ښهر کښې له
خپلو پلرونو سره ښخ کړ او دَده په ځاي کښې دَده زوي
احاز بادشاه شه ٭

## اته ویشتم باب

۱ احاز چه بادشاه شه دَ شلو کالو وه او ده په اورشلیم ١
کښې شپاړس کاله بادشاهي وکړه او ده دَ خداوند
په سترګو کښې راست کار دَ خپل پلار داؤد په شان
ونه کړ ۲ بلکه دَ اسرائیل دَ بادشاهانو په لارو ته او ٢
هم ده دَ بعلیم دَپاره وېلې کړې شوې صورتونه جوړ کړه
۳ او ده دَ ابنِ هنوم په خوړ کښې بخور سېځل او خپل ٣
زامن ئې په اور وسېزل دَ هغو قومونو دَ مکروهاتو په
موافق چه دوي خداوند دَ بنيِ اسرائیل له مخ نه وشړل
۴ او ده په لوړو او په غونډو او تر هري شنې ونې ٤
لاندِ ذبحه وکړه او بخور ئې وسېزل ۵ نو خداوند الله دَده ٥
دي دَ ارام دَ بادشاه په لاس ورکړ او دوي ئې ووهل
او ډېر ئې په بند ورنه بندیوان کړل او دَمشق ته ئې
راوستل او دَ اسرائیل دَ بادشاه په لاس ورکړې شه
چه په لوي وهنې سره ئې ووهل ۶ او فقح بنِ رملیاه په ٦
یهوداه کښې یو سل شل زره په یوې ورځې ووهل دا ټول
بهادران وُو ځکه چه دوي خداوند الله دَ پلرونو خپلو
پرېښودلي وه ۷ او زکري چه دَ افرائیم جبار وه معسیاه ٧
زوي دَ بادشاه او عزریقام رئیس دَ کور او القانه دویم
دَ بادشاه ۸ او بنيِ اسرائیل دَدوي له ورونړو دوه سوه زره ٨

له بنځو او له زامنو او له لونړو بنديان کړل او ورنه ئي
۹ ډېر لوټ هم يووړ او هغه لوټ ئي سامرې ته راوړ ۹ او
هلته کښ دَ خداوند نبي وه نوم ئي عوديد وه نو دَ هغه
لښکر مخې ته چه سامرې ته راته ورغي او ورته ئي ووېل
گوريِ دَ خداوند الله دَ پلرونو غضب په يهوداه باندِ وه
او ستاسو په لاس ئي درکړي دِي او تاسي په داسي غضب
۱۰ قتل کړي دَي چه آسمان ته ورسيده ۱۰ او اوس تاسي دَ
يهوداه او دَ اورشليم دَ دربلو اراده کويِ چه ستاسو مرينه
او وينځې شِي کنزه دا سننا په نزد هو ستاسي په نزد دَ
۱۱ خداوند گرموالي نشته څه ؟ ۱۱ او اوس څما واوريِ او هغه
بنديان چه له خپلو وروڼو مو په بند راوستلي دِي ور
وگرزويِ ځکه چه دَ خداوند دَ غضب گرمي په تاسي باندِ
۱۲ ده ۱۲ نو څو کسان دَ بنيِافرائيم له سردارانو پورته شول
عزرياه بنِ يهوحانان او برخياه بنِ مثليموت او يحزقياه
بنِ شلوم او عماساي بنِ حدلاي په هغو باندِ چه له
۱۳ لښکر نه بيرته راتلل ۱۳ او دغو ته ئي ووېل چه تاسي دَلته
بنديان مه راولئ ځکه چه په موږ باندِ گرموالي دَ خداوند
دَيَ تاسي څمونږ په خطاؤ او څمونږ په گرموالي دَ زياتيدلو
وبونکي يئَ ځکه چه څمونږ گرموالي ډېر دي او په اسرائيل
۱۴ باندِ گرمي دَ غضب ۱۴ نو هغوي جنگيالي سړي هغه بنديوانان
او هغه لوټ پرينبود دَ سردارانو او دَ ټول جماعت دَ ورانډِ
۱۵ ۱۵ او هغه کسان چه په نومونو لقب شوي دِي پورته شول
او بنديان ئي واخستل او له هغې شوکې نه يئَ هغو ټولو
برمنډانو ته ورواغوستولي او پټ ئي کړل او خپلې ئي ور
پښيو کړي او وِ ئي خوړول او وِ ئي څښول او غوړ ئي کړل

او دَ دوي ټول ماندګان ئي په خرونو بوتلل دَ خرمو ښهر
اريحا ته دَ دوي دَ ورونړو څنګ ته ئي وروستل او دوي
۱۶ سامري ته وجاروتل ۱۶ په دغه وقت کښ هغه بادشاه
احاز دَ اشور بادشاه ته واستاوه چه مددګاري ورکړي
۱۷ ۱۷ څکه چه ادومي بيا راغلي وُو او يهوداه ئي وواهه او
۱۸ بنديان ئي په بند بوتلل ۱۸ او فلسطيانو په ښهرونو دَ کوز
سيدان خواره شول او دَ يهوداه جنوبي او بيتِ شمس ئي
ونيوه او ايلون او جديروت او سوکو او کلي ئي او هلته
۱۹ و او سيدل ۱۹ څکه چه خداوند دَ احاز بادشاه دَ يهوداه
په سبب يهوداه ذليل کړ ولي چه ده يهوداه لوڅ کړي
۲۰ وه او په خيانت سره ئي دَ خداوند خيانت وکړ ۲۰ نو په
ده باندِ تلغت فلناسر بادشاه دَ اشور راغي او دي ئي
۲۱ تنګ کړ او زور ئي ونه کړ ۲۱ نو احاز بيتِ يهوه او دَ
بادشاه او دَ سردارانو له کوره يوه برخه واخسته او دَ
اشور بادشاه ته ئي ورکړه مګر هغه مددګاري ونه کړه
۲۲ ۲۲ او دَده دَ تنګئ په وقت کښ ئي هم دَ خداوند خيانت
۲۳ زيات وکړ دا هغه بادشاه احاز دي ۲۳ چه دَ دمشق
خدايانو ته چه دي ئي وهلي وه ذبحه وکړه او ويل ئي چه
دَ ارام دَ بادشاهانو خدايان دَ دوي مددګاري وکړي نو
زه به دوي ته ذبحه وکړم چه ځما مددګاري به هم وکړي
ليکن هغوي دَده او دَ ټول اسرائيل دَ ټنډک خوړلو سبب
۲۴ وه ۲۴ او احاز دَ بيتُ الله لوښي جمع کړل او دَ بيتُ الله
لوښي ئي ټکړي ټکړي کړل او دَ بيتِ يهوه ورونه ئي پورته
کړل او دَ اورشليم په هري کوښي کښ ئي دَ ځان دَ پاره
۲۵ مذبحونه جوړ کړل ۲۵ په هر يو ښهر او په ښهر دَ يهوداه

په لوړو جوړ کړل چه نورو خدایانو ته بخور و سیزي او
۲۶ خداوند الله دَ پلرونو خپل ئې زهیر کړ ۲۶ او نور حال دَده
او ټولې لارې دَده اوّلې او آخزې کوره هغه دَ یهوداه او
۲۷ دَ اسرائیل دَ بادشاهانو په کتاب کښ لیکلي دِي ۲۷ بیا
احاز له خپلو پلرونو سره خملاست او دوي دَ اورشلیم په
ښهر کښ ښخ کړ ځکه چه دوي دَ اسرائیل دَ بادشاهانو قبرونو
ته ور نه وړ او حزقیاه دَده زوي دَده په ځاي بادشاه شه*

# نه ویشتم باب

۱ آ چه حزقیاه بادشاه شه دَ پنځه ویشتو کالو وه او نه ویشت
کال ئې په اورشلیم کښ بادشاهي وکړه او دَ مور نوم
۲ ئې ابیاه لور دَ زکریاه وه ۲ او ده دَ خداوند په سترګو
کښ موافق دَ هر هغه څه چه دَده پلار داؤد وکړه په
۳ راستئ سره کار وکړ ۳ او ده دَ خپلي بادشاهئ دَ اوّل
کال په وړمبئ میاشت کښ دَ بیتِ یهوه دروازي پرانتلي
۴ او مرمت ئې وکړه ۴ او کوهینان او لاویان ئې ننه یستل
۵ او مشرقي کوڅې ته ئې جمع کړل ۵ او ده ورته وویل اي
لاویانو ځما واورئ اوس خپل ځانونه پاک کړئ او بیتِ
یهوه دَ الله دَ پلرونو خپلو پاک کړئ او له مقدّس نه
۶ نجاست و باسئ ۶ ځکه چه ځمونږ پلرونو خیانت کړي دي
او دَ یهوه ځمونږ دَ الله په سترګو کښ ئې شرارت کړي دي
او پرېښودلي ئې دي او مخونه خپل ئې دَ یهوه له مسکن
۷ ګرزولي دِي او ورته ئې شا کړي دَه ۷ او دَ هغه دهلیز
دروازي ئې بندي کړي او ډیوې ئې مړې کړلي او بخور ئې
و نه سیزل او په مقدّس کښ ئې دَ اسرائیل دَ الله دَپاره

۸ سېزونکي قرباني ونه خېژولي ۸ او دَ خداوند قهر په يهوداه
او په اورشليم وه او دوي ئي كړيدي او وېراني او شپېلئ
ته وركړي دي لكه چه تاسي ئي په خپلو سترګو وينئ -
۹ ۹ او ګوري ځمونږ پلرونه په توري پريوتل او ځمونږ ځامن
۱۰ او لونړه او ښځي ځمونږ په بند كښ دَدي دَپاره ۱۰ نو اوس
ځما په زړه كښ دي چه له يهوه الله دَ اسرائيل سره
عهد وكړم نو دي به را نه ګرمي دَ غضب خپل وګرزوي -
۱۱ ۱۱ اي زامنو ځما اوس تاسي مه ګمراه كيږئ ځكه چه خداوند
تاسي غوره كړي يئ چه دَده دَ وړاندِ ودرېږئ او چه خدمت
ئي كوئ او دَده خادمان او بخور سېزونكي شئ
۱۲ ۱۲ نو لاويان پورته شول محث بن عماسائ او يوئيل
بن عزرياه ئي له بني قهاتيانو نه او له بني مراري نه قيس
بن عبدي او عزرياه بن يهللئيل او له جرشونيانو يواخ بن
۱۳ زمه او عيدن بن يواخ ۱۳ او له بني اليصافانه شمري او يعيئل
۱۴ او له بني اصافه زكرياه او متنياه ۱۴ او له بني هيمان نه
يحيئل او شمعي او له بني يدوتون نه شمعياه او عزئيل
۱۵ ۱۵ او دوي خپل ورونړه ټول كړل او پاكي ئي وكړه او دَ بادشاه
دَ فرمان په سوافق دَ خداوند په كلام سره راغلل چه بيت
۱۶ يهوه پاك كړي ۱۶ او كوهينان دَ بيت يهوه دننه ته داخل
شول چه پاك ئي كړي او دوي هغه ټوله ګندګي چه دَ يهوه
په هيكل كښ ئي وموندله دَ بيت يهوه غولي ته ئي راوېستله
او هغه لاويانو ورمليا شول چه دَ قدرون رود ته ئي دَ
۱۷ باندِ وباسي ۱۷ او دَ اولي مياشتي په اول تاريخ ئي دَ خداوند
په تقديس كولو شروع وكړه او دَ مياشتي په اتمي ورځي دَ
خداوند دهليز ته ورسېدل او په اتو ورځو كښ ئي دَ

بیتِ یهوه تقدیس وکړ او په شپاړسمه ورځ دَ اوّلي
۱۸ میاشتي ئې تمام کړ ۱۸ او حزقیاه هغه بادشاه ته دننه
ورغلل او وَ ئې ویل چه مونږ ټول بیتِ یهوه او دَ سوزولو
مذبح او ټول لوښي او دَ نذر دَ ډوډئ خوانچه او دَ
۱۹ هغه ټول لوښي مونږ پاک کړي دِي ۱۹ او هغه ټول
لوښي چه هغه بادشاه احاز په خپلي بادشاهئ کښ
په خپل خیانت کښ سخا کړلي وُو طیار مو کړل او مقدس
مو کړل او کوره دغه دَ خداوند دَ مذبح دَ وړاندِ دِي
۲۰ ۲۰ او هغه بادشاه حزقیاه سحر وقتِي پورته شه
او ټول سرداران دَ ښهر ئې جمع کړل او بیتِ یهوه ته
۲۱ وختل ۲۱ او اوه غوایان او اوه مړونه او اوه وري او
اوه سیرلي دَ وزو ئې دَ خطا دَ ذبحي هغه چه له بادشاهئ
او له مقدّس او له یهوداه وه راوستل او بني هارون
هغو کوهینانو ته ئې وویل چه دَ یهوه په مذبح ئې
۲۲ وخېژويِ ۲۲ او دوي غوایان ذبح کړل او هغو کوهینانو
وینې قبولي کړي او په مذبح ئې چنړکاؤ کړي او مړونه ئې
ذبح کړل او وینې ئې په مذبح چنړکاو کړي او وري ئې ذبح
۲۳ کړل او وینې ئې په مذبح چنړکاؤ کړي ۲۳ او دَ خطاؤ
ذبحي وزان ئې دَ بادشاه او دَ جماعت دَ وړاندِ ور نژدې
۲۴ کړلي ۲۴ او کوهینانو ذبح کړل او دَ هغو په وینو ئې دَ خطا
دَ قربانئ کفارت وکړ دَ ټول اسرائیل دَ پاره ځکه چه هغه
بادشاه وویل چه هغه سیزونکي قربانئ او هغه دَ خطا
۲۵ ذبحي دَ ټول اسرائیل دَ پاره دِي ۲۵ او لاویان ئې په بیت
یهوه کښ له زنګولو او ربابونو او ستارونو سره وِدرول
دَ داؤد او دَ جاد غیب لیدونکي دَ بادشاه او دَ ناتان

اوخپل لاسونه ئې پرکښېښول

نبي دَ فرمان په موافق ځکه چه دَ خداوند له طرف دَده دَ
نبيانو په لاسونو حکم وه ۲۶ نو هغه لاويان دَ داؤد له کاليو ۲۶
سره او هغه کاهنان په توريو سره ودريدل ۲۷ او حزقياه ۲۷
دَ سيزلو دَ قربانيو دَ خيژولو په مذبح باندِ امر وکړ او
دَ سيزلو دَ قربانيو دَ شروع کولو په وقت دَ خداوند
غزل او توريئ په شروع شول او دَ داؤد بادشاه دَ اسرائيل
په کاليو باندِ ۲۸ او ټول جماعت سجده کوله او سرودګرو ۲۸
سرودونه غږول او توريئ وهونکو توريئ غږولي دا ټول وشول
تر هغه پوري چه دَ سيزلو قرباني پوره شولي ۲۹ او چه دَ ۲۹
سيزلو قرباني پوره شولي نو بادشاه او ټول چه ور سره
حاضر وُو ټيټ شول سجده ئي وکړه ۳۰ او هغه بادشاه ۳۰
حزقياه او هغه سردارانو لاويانو ته وويل چه دَ داؤد
په کلام او دَ آصاف هغه رؤيا ليدونکي په کلام سره
ثنا وکړئ او هغو په خوښيئ سره ثنا وکړه او ټيټ شول
او سجده ئي وکړه

۳۱ نو حزقياه ځواب ورکړ و ئي ويل چه اوس تاسو ۳۱
خپل لاسونه دَ خداوند دَپاره ډک کړل نژدي شئ ذبحي
او قربانيِ دَ شکر بيتِ يهوه ته راوړئ نو هغه جماعت
ذبحي او قربانئ دَ شکر راوړلي او سخي دِلانو دَ سيزلو
قربانئ راوستلي ۳۲ او دَ هغو دَ سيزلو قربانيو شمار چه ۳۲
جماعت راوستلي اويا غوايان او سل مږونه او دوه سوه
وري وُو او دا ټول يهوه لره دَ سيزلو قرباني وي ۳۳ او ۳۳
مقدّس کړي شپږ سوه غوايان او دري زره مږونه —
۳۴ مګر کوهينان لږ وُو او نه توانيدل چه دَ ټولو سيزلو ۳۴
قربانيو څرمني وباسِي نو دَ دوي ورونړو هغه لاويانو مدد کړي

وکړه ځو چه کار پوره شه او ځو چه کار پوره شه او
ځو چه کوهنانو دَ خپلو ځانونو پاکي وکړه ځکه چه هغه
لاویان دَ خپل ځان په پاکولو کښې دَ کاهنانو په نسبت ډېر
۳۵ راست دِلان وُو ۳۵ او دَ سېزلو قربانئ هم او دَ سلامتئ
دَ قربانیو وازګې ډېرې وې او سره دَ تویدلو قربانیو دَ هرې
۳۶ سېزلو دَپاره نو دَ بیتِ یهوه خدمت ثابت کړې شه ۳۶ او
حزقیاه او هغه ټول اُمّت خوشحالي وکړه په هغه چه الله دَ
اُمّت دَپاره طیاره کړې وه ځکه چه دا خبره په ناڅاپه وشوه

## دېرشم باب

۱ ۱ او حزقیاه ټول اسرائیل او یهوداه ته واستول او افرائیم
او منسّي ته ئې هم خطونه واستول چه بیتِ یهوه ته په
اورشلیم کښې راشي چه خداوند الله دَ اسرائیل ته فصح
۲ وکړي ۲ او بادشاه او سردارانو او ټول جماعت په اورشلیم
کښې صلاح کړې وه چه فصح دِ په دویمي میاشتې کښې
۳ ورکړې شي ۳ ځکه چه دوي نه توانیدل چه په دغه وقت
کښې ئې وکړي ځکه چه هغه کوهینانو خپل ځانونه پاک
کړي نه وُو او خلق هم اورشلیم ته جمع شوي نه وُو
۴ ۴ نو هغه خبره دَ بادشاه په سترګو کښې او دَ ټول جماعت
۵ په سترګو کښې سمه ښکاریدله ۵ نو هغو مقرّر کړل چه
په ټول اسرائیل له بیر شبع نه تر دانَ پورې منادي وکړي
چه دَ یهوه الله دَ اسرائیل و فصح کولو ته په اورشلیم
کښې راشي ځکه چه دوي له ډېرې مودي نه لکه چه لیکلي
۶ شوي وه هغه کړې نه وه ۶ نو قاصدان له آګاه نامي سره
دَ بادشاه او دَده دَ سردارانو له لاسه په ټول اسرائیل

او په يهوداه کښې لاړل او دَ بادشاه دَ حکم په موافق به
يې ويل چه اي بني اسرائيلو يهوه الله دَ ابراهيم دَ اسحاق
دَ اسرائيل ته را وَگرزئ نو به دي تاسو هغه باقي شويو
ته چه دَ آشور دَ بادشاه له ورغوي نه خلاص شوي
دي در وگرزي ۷ او تاسي لکه دَ خپلو پلرونه او لکه دَ ۷
خپلو ورونړو مه شئ چه په يهوه الله دَ پلرونو دَ دوي
خيانت وکړئ نو ده هغوي ويرانئ ته ورکړل لکه چه تاسي
يې وينئ ۸ اوس تاسي خپل گردونو نه مه سختوئ لکه ۸
چه ستاسو پلرونه وُو بلکه يهوه ته لاس ورکړئ او دَده
مقدس ته راشئ چه دَ هميشه دَپاره يې مقدس کړي
دي او دَ يهوه الله خپل عبادت کوئ چه له تاسو نه
دَده دَ غضب گرمي وگرزي ۹ ځکه چه تاسو يهوه ته ۹
را وگرزئ نو ستاسو ورونړه او ځامن دَ هغو دَ وړاندي
چه دوي يې په بند بوزي رحم به مومي نو به دوي دي
زمکي ته را وجاروزي ځکه چه يهوه ستاسو الله حنان
او رحيم دي او چه تاسي ده ته وجاروزئ نو دي به خپل
مخ در نه لري نه کړي ۱۰ نو قاصدان به دَ افرائيم او دَ ۱۰
منسي په زمکي کښې له يوه ښهر وبل ښهر ته تيريدل
تر زبلونَ پوري ليکن هغوي په دوي پوري خندل
او ټوقي يې کولي ۱۱ مگر له آشير نه او له منسي نه او له ۱۱
زبلون نه څو کسان عاجزي کولي او اورشليم ته راغلل
۱۲ او دَ الله لاس هم په يهوداه کښې ود او دوي ته يې يو ۱۲
زړه ورکړ چه دوي دَ بادشاه او دَ سردارانو په حکم دَ
خداوند دَ کلام په موافق عمل وکړي ۱۳ او اورشليم ته ۱۳
ډير اُمت راجمع شول چه په دويمي مياشتي کښې دَ فطيرو

۱۴ عید وکړي بیشانه ډېر جماعت ۱۴ او دوي پورته شول او
هغه مذبحونه چه په اورشلیم کښې وُو لري ئي کړل او
ټول مذبحونه دَ بخور ئي لري کړل او دَ قدرون رود ته ئي
۱۵ وغورزول ۱۵ او دَ دویمي میاشتي په څوارلسم ئي فصح ذبح
کړه او هغه کوهینان او هغه لاویان خجل شول او خپل
ځانونه ئي پاک کړل او بیتِ یهوه ته ئي دَ سیزلو قربانئ
۱۶ راوړي ۱۶ او په خپل دستور دَ موسی هغه مردِ الله دَ
تورِیت په موافق په خپلي دریدني ودریدل او هغه
۱۷ کوهینانو دَ لاویانو په لاس وینې چنړکاؤ کولي ۱۷ ځکه چه
په جماعت کښې داسي ډېر وُو چه خپل ځانونه ئي پاک
کړي نه وُو نو هغه لاویان دَ فصحو په ذبحو باندي وُو
دَ هر یوه دَپاره چه صاف نه وه تاچه یهوه ته ئي مقدس
۱۸ کړي ۱۸ ځکه چه ډېرو دَ هغه اُمّت هو ډېرو له افرائیم او
له منسّي نه او له یساکرَ او له زبولونَ خپل ځانونه پاک
کړي نه وُو بلکه هسي چه لیکلي شوي نه وه فصح ئي وخوړه
۱۹ مګر حزقیاه دَدوي په باب دُعا وکړه ویل ئي ۱۹ چه هغه
نیک یهوه هر یو چه دَ هغه الله یهوه دَ پلرونو
دَدوي لټولو ته ئي ټول زړه خپل تیار کړي کفارت دِ
۲۰ وکړي اګر که دَ مقدّس دَ طهارت په شان نه وِي ۲۰ نو یهوه
۲۱ دَ حزقیاه واوریدل او خلقو ته ئي شفا ورکړه ۲۱ او هغو
بني اسرائیلو چه په اورشلیم کښې موجود وُو دَ فطیرو
عید ئي په لوي خوښئ سره وکړ او هغه لاویانو او
هغه کوهینانو به ورځ په ورځ دَ حمد په کالیو سره یهوه
۲۲ ته ثنا کوله ۲۲ او حزقیاه دَ هغو ټولو لاویانو ته چه دَ
یهوه دَ نیک معرفت زړه کوَنکي وُو خاطرداري کوله او

هغو تر اوو ورځو مودي پوري دَ عيد قربانۍ خوړلي دَ سلامتۍ
ذبحي ئې ذبح کولي او دَ يهوه الله دَ پلرونو خپلو ستايل
ئې کاول ۲۳ او ټول جماعت مصلحت وکړ چه اوه ورځي نوري ۲۳
دِ وکړي خو اوه ورځي ئې په خوشحالۍ سره وکړې ۲۴ ولي چه ۲۴
حزقياه بادشاه دَ يهوداه جماعت له نمتونه زر غوايان او
اوه زره ميږونه پيش کړل او سردارانو جماعت له نمتونه
زر غوايان او لس زره مږونه پيش کړل او ډېرو له
کوهينانو خپل ځانونه پاک کړه ۲۵ او ټول جماعت دَ يهوداه ۲۵
خوشحالي کوله او هغه کوهينانو او هغه لاويانو او ټول
هغه جماعت چه له اسرائيل نه راغلي وه او هغه بيګانه
چه دَ اسرائيل له زمکي راغلي وُو او هغه چه په يهوداه
کښ اوسيدل ۲۶ او په اورشليم کښ ډېره خوشحالي وه ځکه ۲۶
چه له ورځو دَ سليمان ابنِ داؤد بادشاه دَ اسرائيل
ژاسي په اورشليم کښ نه وه ۲۷ او هغه کوهينان او ۲۷
هغه لاويان پورته شول او امّت نه ئې برکت ورکړ او
دَدوي آواز واوريدلي شه او دَدوي دُعاګاني دَدوي دُعاوي
دَ مقدّس قلا آسمان ته ورسيدل ✦

# يو ديرشم باب

آ او چه دا کار پوره شه نو ټول اسرائيل چه حاضر ۱
وه دَ يهوداه ښهرونو ته ووتل او ټولي ستني ئې ماتي
کړي او اشيرونه ئې پريکړل او لوړي او مذبحونه ئې له
ټول يهوداه او له بنيامين او له افرائيم او له منسّي
نه ونړول ځو چه تباه شول بيا ټول اسرائيل هر يو په
خپلي آخستني خپلو ښهرونو ته وجاروتل ۲ او حزقياه ۲

خلقو ته دَ هغو کوهینانو او دَ هغو
لاویانو په موافق دَ خلقو دَ دوي: په موافق دَ خدمت
دَ دوي: کوهینانو ته او لاویانو ته دَ سیزلو دَ قربانیو دَ سلامتئ
دَ ذبحو دَ خدمت کولو دَپاره: او دَ حمد او دَ ثنا کولو
دَپاره: دَ خداوند دَ ډېرې په دروازو کښې مقرّر کړل -
۳ ۳ او بادشاه یوه حصه له خپل موشيي دَ سیزلو دَ قربانیو
دَپاره هغه قربانئ دَ صباح او هغه دَ بیگا او قربانئ دَ
سبّتونو او دَ میاشتو او دَ عیدونو دَپاره لکه چه په تورٰت
۴ دَ خداوند کښې لیکلي شوي دي و ئې کړې ۴ او اُمّت ته
چه په اورشلیم کښې اوسیدل و ئې وېل چه دَ هغو
کوهینانو او دَ هغو لاویانو بخره دِ ورکړي: دي دَپاره چه
۵ دَ خداوند په تورٰت کښې مضبوط شِي ۵ او چه دا کلام
فراخ شه نو بني اسرائیل له ورېښو دَ غنمو او دَ شرابو
او دَ تیلو او دَ شهدو او له ټول حاصل دَ پټي ئې ډېر
راوړل او دَ هر یوه شِي لسمه ئې په کثرت سره راوړه
۶ ۶ او بني اسرائیلو او یهوداه چه دَ یهوداه په ښهرونو
کښې اوسیدل هغو هم دَ غوایانو لسمه او دَ میږونو
لسمه راوړه او دَ هغو مقدّسو څیزونو لسمه چه یهوه
الله دَ دوي ته مقدّس کړي شول هغه ئې توده توده کېښودل
۷ ۷ په دریمي میاشتي کښې ئې دَ تودي په بنیاد ږدلو شروع
۸ وکړه او په اومي میاشتي ئې پوره کړلې ۸ او حزقیاه او
سرداران راغلل او هغه تودي ئې ولیدلې او خداوند او
۹ دَ ده اُمّت اسرائیل ته ئې مبارکي ورکړه ۹ او حزقیاه هغه
کوهینان او هغه لاویان دَ تودي له حاله و پوښتیدل -
۱۰ نو عزریاه هغه سردار دَ صادوق دَ کور وه خبره ئې وکړه

وئ ويل چه دَ نذرونو دَ راوړلو له شروع نه وبيتِ
يهوه لره نو موږ وخوړل او ماړه شولو او ډيرڅه رانه
پاتِ شول ځکه چه يهوه خپل اُمّت ته برکت ورکړ او
۱۱ هغه چه پاتِ دِي هغه دا ډيرئِ دَه ۱۱ او حزقياه په بيتِ
۱۲ يهوه کښ دَ انبارخانو دَ تيارولو امر وکړ ۱۲ او هغه ئي
تياري کړلي او هغو نذرونه اولسمي او مقدّس څيزونه په
ايماندارئ سره دننه راوړل او په هغو باندِ کونياه هغه لاوِي
۱۳ او شمعِي دويم وړور دَده سرداران وُو ۱۳ او يحئيل او
عزرياه او نحث او عساهيل او يريموث او يوزاباد او ايليئيل
او يسمکيا او محث او بناياه بازخواستګران وُو دَ کونياه او
دَده دَ وړور شمعِي تر لاس لاندِ دَ حزقياه بادشاه دَ حکم
۱۴ دَمقرّرئ په موافق او دَ عزرياه رئيس دَ بيت الله ۱۴ او قورِي
بنِ يمنه هغه لاوِي چه دَ مشرق دَ لورِي دروان وه په فدا
شوِيو دَ الله چه دَ يهوه نذرونه او اقدس الاقداس ورکوِي
۱۵ ۱۵ او دَده تر لاس لاندِ عدن او منيامين او يشوع او شمعياه
او امرياه او سکنياه دَ هغو کوهينانو په ښهرونو کښ په
امانت سره چه خپلو وړونړو ته که لوي وِي که واړه وِي په
۱۶ حلقو کښ ورکوِي ۱۶ زيات له نسب‌نامي دَ نرانو له دري کلنيو
هلکانو او لا زيات له هر يوه چه بيتِ يهوه ته ننه‌وت دَ
هري ورځي دَ باره دارئِ په موافق دَدوي دَ خدمت په خپل
۱۷ نګهبانئِ کښ موافق دَ حلقو دَدوي ۱۷ او نسب‌نامي دَ هغو
کوهينانو په کورونو دَ پلرونو دَدوي او هغه لاويان له شل
۱۸ کلنيو او لا زيات په خپل نګهبانئِ په خپلو حلقو ۱۸ او نسب‌نامي
دَ ټولو وړوکو ئي او دَ ښځو ئي او دَ ځامنو ئي او دَ لونړو ئي
په هر جماعت کښ ځکه چه دوي په خپل امانت په قدوسيت

۱۹ کښې خپل ځانونه پاک کړل ۱۹ او دَ بني هارون دَپاره دَ هغو
کوهينانو دَپاره هم چه دَدوي دَ ښهرونو دَ ځرَاګاهونو په
پټو کښې وُو په هر ښهر کښې هغه کسان چه په نومونو
کښې لقب شوي وُو دَ حصّو دَ ورکولو دَپاره په کوهينانو
دَ هر نارينه دَپاره او دَ هر يوه دَ لاويانو دَپاره چه په
۲۰ نسب نامي کښې ليکلي شوي وه ۲۰ او حزقياه په ټول يهوداه
کښې داسي وکړل او دَ يهوه دَده دَ الله په نظر کښې هغه
۲۱ چه نيک او راست او آمين وه وئي کړل ۲۱ او په هر
کار چه ده دَ بيت الله په خدمت شروع وکړه او په تورِيت
او په فرض خدمت چه دَده الله ئي طلب کاوه په ټول زړه
خپل سره ئي وکړل او کامياب شه ٭

## دوه ديرشم باب

۱ ۱ او پس له دي کارونو او دَدي امانتدارئ نه سنحاريب
بادشاه دَ آشور راغي او په يهوداه ننه وت او په محکمو
ښهرونو ئي ډيره وکړه او ويل ئي چه هغه دَ ځان دَپاره
۲ حصار کښت کړي ۲ او چه حزقياه وليد چه سنحاريب راغي
۳ او چه مخ ئي په اورشليم باندِ جنګ ته کړي دَي ۳ نو ده
خپلو سردارانو او خپلو جبّارانو سره مصلحت وکړ چه
دَ هغو چينو اوبه چه له ښهره دَباندِ وي بند وتړي
۴ او هغوي مددکاري وکړه ۴ نو ډير خلق جمع شول او ټولي
چيني او هغه رود چه دَ زمکي په منځ کښې جاري وه بند
ئي وتاړه ويل ئي چه ولي دِ دَ اشور بادشاه راشي او ډيري اوبه
۵ دِ ومومي ۵ او ده ځان تکړه کړ او ټول ترېدلي ديوالونه ئي
بنا کړل او تر برجونو پوري ئي لوړ کړل او يو بل ديوال دَباندِ

او دَ داؤد دَ ښهر ملوا ئې مضبوط کړ او ډيري ډيري وَسلي
او ډالونه ئې جوړ کړل ٦ او دَ جنګ سرداران ئې په خلقو ٦
مقرّر کړل او دَ ښهر دَ دروازي غولي ته ئې ځان ته جمع
کړل او دَ هغو په زړونو باندِ ئې خبري کولي ويل ئې ٧ چه ٧
ټکره شئ او اُستوار شئ او دَ اشور له بادشاه نه او له
هغه قوم نه چه ورسره دَی مه ويريږئ او مه ترسيږئ
ځکه چه له مونږ سره په نسبت دَ هغو چه له ده سره
دِي ډير دِي ٨ له ده سره بازو دَ بشر دَي او له مونږ ٨
سره يهوه ځمونږ الله دَی چه مددګاري مو وکړي او ځمونږ
دَپاره په جنګونو ځمونږ کښ وجنګيږي او اُمّت دَ حزقياه
بادشاه دَ يهوداه په خبرو باندِ تکيا وکړه
٩ پس له دې سنحاريب بادشاه دَ اشور خپل مريونه ٩
اورشليم ته واستول: او دي په لخيش باندِ وه: او ټول
سلطنت ورسره حزقياه بادشاه دَ يهوداه ته: او ټول يهوداه
ته چه په اورشليم کښ وُو ويل ئې ١٠ چه سنحاريب بادشاه ١٠
دَ آشور داسي وائي چه تاسي په څه توکّل کوئ چه په
کوټ کښ په اورشليم کښ وسيږئ ١١ حزقياه تاسو نه لمځوي ١١
څه؟ چه په تندي او په لوږي مو مرګ ته ورکوي وائي
چه دَ اشور دَ بادشاه له ورغوي نه به مو خداوند
ځمونږ الله خلاص کړي ١٢ دا هغه حزقياه نه دَی څه؟ ١٢
چه دَده لوړي او مذبحونه ئې لري کړل او يهوداه او
اورشليم ته ئې خبره وکړه ويل ئې چه دَ يوي مذبح دَ
وړاندِ به سجده وکړئ او په هغه به بخور سيزئ ١٣ ګنړه ١٣
تاسي نه پوهيږئ په هغه چه ما او زما پلرونو په ټولو
خلقو دَ زمکي کړي دِي نو دَ هغي زمکي دَ قومونو خدايان په

توان سره و توانیدل څه ؟ چه خپلي زمکي ئي ځما له لاسَ
۱۳ خلاصي کړي وي ۱۳ دَ هغو خلقو په ټولو خدایانو کښ چه
ځما پلرونو حرم کړل هسي څوک وه چه و توانیده چه خپل
خلق ځما له لاسه خلاص کړي چه ستاسو الله به وتوانیږي
۱۵ چه ځما له لاسه مو خلاص کړي ۱۵ او اوس دِ حزقیاه تاسي
و نه ټګي او داسي دِ تاسي نه لمځوي او په ده باندِ باور
مه کوئِ ځکه چه دَ هیڅ قوم او دَ هیڅ بادشاهت خدای
و نه توانیده چه خپل قوم ئي ځما له لاسه او ځما دَ پلرونو
له لاسه خلاص کړي وي نو بیا څه امکان لري چه ستاسو
۱۶ الله به تاسو ځما له لاسه خلاص کړي ۱۶ او دَ هغو مریونو
دَ خداوند هغه الله په خلاف او دَده دَ بنده حزقیاه
۱۷ په خلاف نوري هم خبري وکړي ۱۷ او لیکني ئي دَ خداوند الله
دَ اسرائیل دَ پیغور کولو دَپاره او دَده دَ مخالفو خبرو کولو
دَپاره ولیکلي ویل ئي لکه چه دَ زمکي دَ قومونو خدایانو خپل
خلق ځما له لاسه خلاص نه کړل هسي به دَ حزقیاه الله
۱۸ خپل قوم ځما له لاسه خلاص نه کړي ۱۸ او په لوي آواز
سره ئي په یهودِي ژبي دَ اورشلیم هغو خلقو ته چه په
دیوال باندِ وُو نعري وکړي چه و ئي ویروِي او چه و ئي
۱۹ ریږدوِي تا چه ښهر و نیسي ۱۹ او دوي دَ اورشلیم په الله
داسي خبري وکړي لکه دَ زمکي دَ قومونو دَ خدایانو په
۲۰ باب کښ چه هغه دَ آدمزاد دستکارِي وُو ۲۰ نو حزقیاه
بادشاه او اشعیاه بن آموص په دي حال باندِ دعا وکړه
۲۱ او آسمان ته ئي نعرِي وکړي ۲۱ نو خداوند یهوه فرښته
واستوله ټول جبّاران دَ قوّت او امیران او سرداران ئي
دَ آشور دَ بادشاه په ډیره کښ پرېکړل او هغه په پښیمانه

سره څخ خپل وطن ته وجاروښت او چه دَ خپل خداي په کور
کښې ننه‌وت نو هغو چه دَده له پښت نه وتلي وُو هلته
۲۲ ئې په توري وغورزاوه ۲۲ او خداوند حزقياه او اوسېدونکي
دَ اورشليم له سنحاريب بادشاه دَ آشور له لاسه خلاص
کړل او دَ هغو ټولو له لاسَ او له هره طرفه ئې دوي بوتلل
۲۳ ۲۳ او ډېرو خلقو به اورشليم ته دَ خداوند هديې راوړې
او حزقياه بادشاه دَ يهوداه ته تحفې او پس له دغه دَ ټولو
قومونو په سترګو کښې سرفراز شه

۲۴ ۲۴ او په دغو ورځو کښې حزقياه دَ مرګ ترحده پورې
رنځور شه او ده خداوند ته دُعا وکړه نو هغه له ده
۲۵ سره خبرې وکړې او ده ته ئې يوه نښه ورکړه ۲۵ ليکن
حزقياه دَ هغه احسان په موافق چه په ده وه راونه ګرزېد
ځکه چه دَده زړه هسک شه نو په ده او په يهوداه
۲۶ او په اورشليم قهر وشه ۲۶ بيا حزقياه په سبب دَ کبرجنې
دَ زړه خپل عاجزي وکړه ده او اوسېدونکو دَ اورشليم
او دَ حزقياه په ورځو کښې په دوي باندِ قهر رانه غې -
۲۷ ۲۷ او حزقياه لره دولت او عزّت بېحده ډېر وه او ده دَ خان
دَپاره دَ سپينو او دَ سرو زرو او دَ قيمت بها کاڼو او
دَ بلسان او دَ ډالونو او دَ پسنديدو لوښو خزاني جوړې
۲۸ کړې ۲۸ او دَ غنمو او دَ شيرو او دَ تيلو انبارخاني او دَ
ټولو غيلو غواو دَپاره اخورونه او دَ رمو دَپاره اخورونه
۲۹ ۲۹ ده دَ خان دَپاره ښهرونه جوړ کړل او مال دَ خاروبو
سيرې او غوا ئې پرېوانه وې ځکه چه الله ده ته بېحده
۳۰ ډېر مال مويشي ورکړې وُو ۳۰ او دغه حزقياه دَپاس جيحون
دَ اوبو دَ چيني بند ئې وتاړه او سيخ ئې لاندِ دَ داؤد له

نِهِرَ مغرب لورِي ته رواني كړلي او حزقياه په ټول كار
۳۱ خپل كښ كامياب شه ۳۱ او هم هسي دَ بابل سردارانو
دَ استاځو په باب چه ده ته ئې استولي وُو چه له ده نه
دَ هغو عجائباتو پوښتنه وكړي چه په زمكه كښ شوي وُو
الله دي دَ ازمايلو دَپاره پرېښي وه تاچه ټول چه دَده په
۳۲ زړه كښ وُو و پوهيږي ۳۲ او نوري خبري دَ حزقياه او دَده
مهرباني كوره چه دَ آموص دَ زوي يسعياه هغه نبي په رؤيا
كښ دَ يهوداه او دَ اسرائيل دَ پادشاهانو په كتاب كښ
۳۳ ليكلي شوي دي ۳۳ او حزقياه له خپلو پلرونو سره څملاست
او هغو دي دَداؤد دَ زامنو دَ قبرونو په ختني كښ ښخ كړ او
ټول يهوداه او اوسيدونكي دَ اورشليم دَده په مرګ دَده
تعظيم وكړ او منسّي دَده زوي دَده په ځاي بادشاه شه*

# دري ديرشم باب

۱ آ او منسّي چه بادشاه كيده دَ دوه لسو كالو وه او ده
۲ په اورشليم كښ پنځه پنځوس كاله بادشاهي وكړه ۲ او
ده دَ خداوند په سترګو كښ بدي وكړه دَ هغه قومونو
دَ پليتيو په موافق چه خداوند دَ اسرائيل له مخي و شړل
۳ ۳ او دي وګرزيده او هغه لوړي چه دَده پلار حزقياه نړولي
وي بنا كړلي او دَ بعليم دَپاره ئې مذبحونه ودرول او
اشيرياني ئې جوړي كړلي او ټول لښكر دَ آسمان ته ئې سجده
۴ وكړه او عبادت ئې كاوه ۴ او په بيتِ يهوه كښ ئې مذبحونه
بنا كړل (په هغه ځاي) چه يهوه ووئيل چه خما نوم به په
۵ اورشليم كښ تر ابدَ پوري وي ۵ او ټول لښكر دَ آسمانونو
ته ئې دَ بيتِ يهوه په دوو غولو كښ مذبحونه بنا كړل -

٦ او خپل ځامن ئې د ابن هنوم په خوړ کښې په اور کښې ٦
تېر کړل او جادو ئې وکړ او فالونه ئې اخول او سحر کړي ئې
کوله او د پیریانو او د جادوګرانو کار ئې کاوه او د خداوند
په سترګو کښې ئې ډېره بدي وکړه چه دی په قهر کړي ٧ او ٧
د هغه تراشلي شکل چه ده جوړ کړ په بیت الله کښې
کېښود چه د هغه په باب الله داؤد ته او د ده زوي سلیمان
ته وویل چه زه به په دې کور کښې او په اورشلیم کښې
چه ما له ټولو فرقو د اسرائیل نه غوره کړ خپل نوم به تر
ابده پوري کېږدم ٨ او زه به بیا د اسرائیل پښي له هغې خاورې ٨
چه ما د دوي پلرونو ته مقرره کړې ده لرې نه کړم تش
که دوي به هر هغه ټولو عمل وکړي او وئې ساتي چه ما په لاس
د موسیٰ پرې حکم کړي دي د هغه ټول تورات او حقونه
او عدالتونه ٩ لیکن منسي یهوداه او د اورشلیم اوسېدونکي ٩
داسې ګمراه کړل چه له هغو قومونو چه خداوند د بني اسرائیل
له وړاندې برباد کړل زیات شرارت وکړ ١٠ او خداوند منسي ١٠
او د ده امت ته کلام وکړ او دوي و نه نغوتل ١١ نو خداوند ١١
په دوي باند د اشور د بادشاه د لښکر سرداران راوستل
او منسي ئې په غنو زنځیرونو ونیو او د زېړو په ځولانو
ئې بند وتاړه او بابل ته ئې په بند بوته ١٢ او چه په تنګ ١٢
شه نو د خداوند الله خپل مخ ته ئې زاري وکړه او د خپلو
پلرونو د الله د وړاندې ئې ډېره عاجزي وکړه ١٣ او ده ته ئې ١٣
دعا وکړه او ده قبوله کړله او د ده زاري ئې واورېدله او
دې ئې د اورشلیم خپلې بادشاهۍ ته بېرته وروست نو
منسي پوه شه چه خداوند هغه الله دی ١٤ او پس ١٤
له دې نه د داؤد له ښهره د باند د جیحون د مغرب په

لوړي په خوړ کښ او دَ کبانو دَ دروازي تر ننه وتني پوري ئي
يو ديوال بنا کړ او عوفل ئي ګير کړ او هغه ئي ډير اوچت
کړ او دَ لښکرو سرداران دَ قوت ئي په ټولو محکمو ښهرونو
١٥ دَ يهوداه کښ کښينول ١٥ او ده هغه بيګانه خدايان او
هغه شکل له بيتِ يهوه نه او ټول هغه مذبحونه چه
ده دَ بيتِ يهوه په غره کښ او په اورشليم کښ بنا کړي
١٦ وُو لري کړل او له ښهره ئي دَ باندِ وغورزول ١٦ او دَ يهوه
مذبح ئي بنا کړل او په هغي ئي دَ سلامتئ او دَ شکر ذبحي
ذبحي کړي او يهوداه ته ئي حکم وکړ چه دَ يهوه الله دَ
١٧ اسرائيل عبادت کويِ ١٧ مګر هغه اُمّت لا تر اوسه پوري
په لوړو ځايونو قربانئ کولي تش دَ يهوه الله دَ دوي دَپاره
١٨ ١٨ او نوري خبري دَ منسيِ او دُعا دَده الله ته او دَ هغو رؤيا
ليدونکو کلام چه ده ته ئي په نُوم دَ يهوه الله دَ اسرائيل
کلام وکړ ګوره دغه دَ اسرائيل دَ بادشاهانو په اخبارونو کښ
١٩ دي ١٩ او دُعا دَده او قبوليدل دَده او ټولي خطاګاني دَده او وي
خيانت دَده او هغه ځايونه چه ده په لوړو مقامونو کښ
بنا کړل او هغه اشيريان او هغه تراشلي بتونه ئي ودرول
وړاندِ دَ عاجزئ کولو دَده ګوره دَغه دَ حوزي په اخبارونو
٢٠ کښ ليکلي شوي دي ٢٠ او منسيِ له خپلو پلرونو سره
څملاست او دي ئي دَده په کور کښ ښخ کړ او عامون دَده
زوي دَده په ځاي بادشاه شه
٢١ ٢١ عامون چه بادشاه کيده دَ دوويشتو کالو وه او
٢٢ دوه کاله ئي په اورشليم کښ بادشاهي وکړه ٢٢ او ده دَ
خداوند په سترګو کښ بدي وکړه لکه چه منسّيِ دَده پلار
وکړه او عامون هغو ټولو تراشلي بتانو ته ذبح وکړه لکه چه

دَده پلار منسّي وکړه او عبادت ئې وکړ ۲۳ او دَ خداوند ۲۳
دَ وړاندِ ئې عاجزي و نه کړه لکه چه دَده پلار منسّي وکړه
بلکه دغه عامون زياته ګناه وکړه ۲۴ او دَده نوکرانو په ده ۲۴
سازش وکړ او دئ ئې په خپل کور کښې مړ کړ ۲۵ او دَ زمکي ۲۵
خلقو هغه ټولو سازش کونکو دعامون بادشاه قتل کړل او
دَ زمکي خلقو يوشياه دَده زوي دَده په ځاي بادشاه کړ *

# څلور ديرشم باب

آ يوشياه چه بادشاه شه دَ اتو کالو وه او يو ديرش کاله ۱
ئې په اورشليم کښې بادشاهي وکړه ۲ او هغه چه دَ خداوند ۲
په سترګو کښې راست وُو په عمل ئې راوړل او دَ خپل پلار
داوُد په لارو تګه او په ښي او په ګينړ لوري و نه ګرزيده -
۳ او دَ خپلي بادشاهئ په اتم کال کښې چه لا تر اوسه ځوان ۳
وه دَ خپل پلار داوُد دَ الله په طلب سر شه او په دولسم
کال کښې ئې شروع وکړه چه يهوداه او اورشليم له لوړو
مکانونو او له اشيريانو او له تراشلي شوي بُتانو او له
ويلي کړي صورتونو نه پاک کړي ۴ او هغو دَده دَوړاندِ دَ بعليم ۴
مذبحونه ونړول او دَ نمر صورتونه چه ورباندِ پاس وُو پري
ئې کړل او اشيريان او تراشلي او صورتونه ئې مات کړل او
په هغو قبرونو چه ذبح ئې ورته کوله چنړکاو ئې کړل ۵ او دَ ۵
کوهينانو هډوکي ئې دَدوي په مذبحونو وسيزل او يهوداه او
اورشليم ئې پاک کړل ۶ او دَ منسّي او دَ افرائيم او دَ شمعون ۶
په ښهرونو کښې تر نفتالي پوري دَدوي دَ کوزونو چاپيره ئې
ازمايښت کاوه ۷ او مذبحونه او اشيريان ئې ونړول او تراشلي ۷
صورتونه ئې اوره اوړه وټکول او ټول صورتونه دَ نمرئې په

او اوړه اوړه ئې کړل

تولي زمکي دَ اسرائيل کښې پريکړل بيا اورشليم ته وجاروت
¶ ۸ ۸ او دَ خپلي بادشاهيَ په اته لسم کال کښې ئې پس له پاکولو دَ
زمکي او دَ بيتِ شافان بن اصليا او معسياه رئيس دَ ښهر
او يواخ بن يوآحاز ذکرنويس واستول چه دَ بيتِ يهوه الله مرمت
۹ وکړي ۹ او دوي حلقياه هغه لوي کوهين ته هغه سپين زر چه
په بيت الله کښې راوړلي شوي وُو چه هغه لاويانو نګاهبانانو
له منسي او افرائيمه او له ټوله باقي اسرائيله او له ټوله يهوداه
او بنيامينَ جمعَ کړي وُو ورکړل او اورشليم ته وجارونل -
۱۰ ۱۰ او هغه ئې دَ هغه کاريګرانو په لاس ورکړل چه دَ بيت يهوه
بازخواست کونکي وُو او هغه کارکونکي کاريګران چه دَ خداوند
په کور کښې ئې کار کاوه دَ بيت دَ پيوندولو او دَ مضبوط کولو
۱۱ دَپاره ۱۱ او هغو ترکاڼانو او معمارانو ته ورکړل چه تراشلي کاڼي
او دَ وصل کولو دَپاره ئې لرګي او دَ هغو کوټو دَ ښيشونو دَپاره
۱۲ چه دَ يهوداه بادشاهانو خراب کړي وُو ۱۲ او هغو کسانو به په
ايمانداريَ سره هغه کار کاوه او په دوي باندِ عهده داران
يحث او عوبدياه هغه لاويان له بني مراري نه او زکرياه او
مشلام له هغو بني قهاتيانو دَ ناظرانو دَپاره او له هغو لاويانو
۱۳ هر يو چه دَ سرود په کاليو ماهر وه ۱۳ او دوي په باربردارانو
باندِ وُو او په ټولو کارکونکو دَ هر هر خدمت ناظران وُو او
۱۴ له لاويانو ليکونکي حاکمان او دروانان وُو ۱۴ او دَ دوي په يستلو
کښې دَ هغه سپين زر چه بيت يهوه ته داخل کړي شول نو
حلقياه هغه کوهين دَ خداوند دَ توريت کتاب دَ موسيٰ په
۱۵ لاس بيا موند ۱۵ نو حلقياه ځواب ورکړ او شافان کاتب ته ئې
و ويل چه ما په بيتِ يهوه کښې دَ توريت کتاب موندلي دي
۱۶ او حلقياه هغه کتاب شافان ته وسپاره ۱۶ نو شافان هغه

کتاب بادشاه ته وروړ او بادشاه ته ئې خبره بیا راوړه و ئې
ویل چه هر هغه څه چه ستا دَ نوکرانو په لاس ورکړې
۱۷ شوي دِي کوي ئې ۱۷ او هغه سپین زر چه په بیتِ یهوه
کښې موندلي شوي وُو توي کړي ئې دِي او دَ عهده دارانو
۱۸ په لاس او دَ کاریګرانو په لاس کښې ئې ورکینبودل ۱۸ او
شافان هغه کاتب بادشاه ته ښکاره کړه و ئې ویل چه ما ته
حلقیاه هغه کوهین کتاب راکړي دَی او شافان دَ بادشاه
۱۹ دَ وړاندِ په کښې ولوست ۱۹ او چه بادشاه دَ تورات کلام
۲۰ واوریده نو خپل جامې ئې څیرې کړې ۲۰ او بادشاه حلقیاه او
اخیقام بنِ شافان او عبدون بنِ میکاه او شافان کاتب
۲۱ او عسایاه مرېي دَ بادشاه ته حکم وکړ و ئې ویل ۲۱ لاړ
شئ زما دَپاره او دَ باقِي اسرائیلو او یهوداه دَپاره خداوند
ته سوال وکړئ دَ هغه کتاب دَ کلام په باب چه موندلي شوي
دَی ځکه چه لوي دَی هغه غضب دَ یهوه چه په مونږ
به ئې توي کړي دَی دَپاره چه زمونږ پلرونو دَ یهوه کلام
نه ساته تاچه دَ دوي په موافق دَ هر هغه څه چه په
۲۲ دي کتاب کښې لیکلي شوي دِي و ئې کړي ۲۲ نو حلقیاه لاړ
او هغوي چه بادشاه حکم ورته کړي وه خلده نبیې ته بنځه
دَ شلوم بنِ توقهث بنِ خسره ساتونکي دَ جامو او دغه په
اورشلیم کښې په دویم ویش کښې اوسیدله او په دې شان
۲۳ سره دوي خبره ورته وکړه ۲۳ نو دې ورته وویل چه یهوه
الله دَ اسرائیل داسې وائي چه تاسو هغه سړِي ته چه تاسو
۲۴ ئې ما لره را استولِي یئِ ووائِئ ۲۴ چه خداوند داسې وائي
ګورئِ په دې ځاي او دَ دغه په اوسیدونکو به آفت راکاږم
ټول لعنتونه چه لیکلي شوي دِي په هغه کتاب کښې

۲۵ چه دوي دَ يهوداه دَ بادشاه دَ وړاندِ لوستلي دِي ۲۵ دي
دَپاره چه دوي زه پريښودلي يم او نورو خدايانو ته يې
خوشبوئي سيزلي دِي تاچه ما په ټولو كارونو دَ لاسونو خپلو
په قهر كړي او زما غضب به په دې ځـــاي توي شي او مړ
۲۶ به نه شي ۲۶ او بادشاه دَ يهوداه چه تاسي يې واستولئ چه
له خداوندَ سوال وكړئ نو تاسي هغه ته ووايئ چه يهوه
الله دَ اسرائيل داسي وايي چه دَ هغه كلام په جهت چه
۲۷ تا آوريدلي دي ۲۷ دې دَپاره چه ستا زړه نرم شه او دَ
الله دَ وړاندِ دِ عاجزي وكړه هركله چه تا دَدَه كلام واوريده
په دې ځاي باندِ او دَدَه په اوسيدونكيو باندِ او تا خپلي
جامي څيري كړي او زما دَ وړاندِ دِ وژړل نو ما دِ هم اوريدلي
۲۸ دِي خداوند وحي كوي ۲۸ گوره زه به تا ستا پلرونو ته راټول
كړم او ته به خپل قبر ته په سلامتئ سره راټول كړي شي
او هغه ټول آفت چه زه يې په دې ځاي او دَدغه په اوسيدونكو
راكابم ستا سترگي به يې ونه وينې او هغوي بادشاه ته خبر
ور وكړزاوه
۲۹ ۲۹ او بادشاه واستاوه او ټول سپين ږيري دَ يهوداه
۳۰ او دَ اورشليم يې جمع كړل ۳۰ او بادشاه بيتِ يهوه ته وخوت
له ټولو سړيو دَ يهوداه او اوسيدونكيو دَ اورشليم او هغه
كوهينان او هغه لاويان او ټول اُمّت له ووكيو تر لويو
پوري او دَدوي په غوږونو كښ يې ټول كلام دَ كتاب دَ
هغه عهد چه په بيتِ يهوه كښ وموندلي شه ويې لوست
۳۱ ۳۱ او بادشاه په خپل ځاي ودريده او دَ يهوه دَ وړاندي
يې عهد وتاړه دَپاره دَ پيروئ دَ يهوه او دَدَه دَ فرضونو
ساتلو او دَ شاهديو دَدَه او دَ حكمونو دَدَه په ټول زړه خپل

او په هغو لول شان خپل چه دي به په کلام دَ هغه عهد چه
۳۲ په دي کتاب کښ ليکلي دي عمل کوي ۳۲ او ده هغه ټول چه
په اورشليم او په بنيامين کښ وموندلي شول ودرول نو
اوسيدونکيو دَ اورشليم موافق دَ عهد دَ الله دَ دوي دَ
۳۳ پلرونو دَ الله عمل وکړ ۳۳ او يوشياه ټول مکروه شيزونه
له ټولو زمکو دَ بني‌اسرائيل لري کړل او هغه ټول چه په
اورشليم کښ موجود وُو و ئې لګول چه يهوه الله دَ دوي
عبادت کوي ټولي ورځي دَده به له پيروئ دَ يهوه الله دَ
پلرونو دَ دوي لري نه شول *

# پنځه ديرشم باب

۱ او يوشياه په اورشليم کښ دَ يهوه دَپاره فصح وکړه او
۲ دَ اولي مياشتي په څوارلسمَ ئې فصح ذبح کړه ۲ او کوهينان
ئې دَ هغو په نګهبانئ ودرول او دَ بيت يهوه دَ خدمت
۳ دَپاره ئې دوي تکړه کړل ۳ او هغو لاويانو ته چه ټول اسرائيل
ته ئې تعليم ورکاوه چه دَ خداوند مقدّسان دُوُ وويل چه
دَ پاکئ هغه صندوق په هغه بيت کښ چه سليمان بن
داؤد بادشاه دَ اسرائيل بنا کړي وه کيږدئ تاسو به ئې
په اوږو نه باروئ اوس دَ خپل الله خداوند او دَده دَ
۴ اُمّت اسرائيل خدمت کوئ ۴ او دَ خپلو پلرونو کورونه
تيار کړئ موافق دَ حلقو ستاسو موافق دَ ليکلو دَ داؤد
بادشاه دَ اسرائيل او موافق دَ ليکلو دَ سليمان زوي دَده
۵ ۵ او په مقدس کښ ودريږئ موافق دَ ويشونو دَ کورونو
دَ پلرونو دَپاره دَ وروڼو ستاسو دَ اُمّت دَ څامنو او دَ
۶ حلقي دَ پلار دَ کور دِ وي دَ لاويانو دَپاره ۶ او فصح ذبح کړئ

او پاکي وکړئ او خپل ورونړه تيار کړئ چه په موافق دَ کلام دَ
۷ خداوند په لاس دَ موسیٰ عمل وکړئ ۷ او يوشياه دَ اُمّت
ښامنو ته ميږي وري سيرلي نعمت ورکړل دا ټول دَ فصحو دَپاره
دَ ټولو موجودو دَپاره په شماره دَ ديرشو زرو او دري زره
۸ له غوايانو دا له مال موېشي دَ بادشا نه ۸ او هغه سردارانو
په نفل دَ اُمّت دَپاره نعمت ورکړل او کوهينانو له او لاويانو
له حلقياه او زکرياه او يحئيل رئيسان دَ بيت الله کوهينانو
له دَ فصح دَپاره دوه زره او شپږ سوه ورکړل او دري سوه
۹ غوايان ۹ او کوننياه او شمعياه او نتنئيل دَ هغه ورونړو
او حسبياه او يعئيل او يوزاباد سردارانو دَ لاويانو دَ
فصحو دَپاره ليويانو ته پنځه زره له غوايانو او پنځه سوه پيش
۱۰ کړل ۱۰ نو هغه خدمت تيار شه او هغه کوهينان په خپلي
دريدني کښ ودريدل او هغه لاويان په خپلو حلقو کښ
۱۱ موافق دَ حکم دَ بادشاه ۱۱ او فصح ئي ذبح کړه او هغه کوهينانو
په خپلو لاسونو چنرکاؤ کولي او هغه لاويانو به له پوستونو
۱۲ ايستل ۱۲ او دوي دَ سيزلو قربانئ لري کړي چه موافق دَ
ويشونو دَ کورونو دَ پلرونو ئي دَ اُمّت ښامنو ته ورکړي
چه هغوي ئي خداوند ته نژدي کړي لکه چه دَ موسیٰ په
۱۳ کتاب کښ ليکلي شوي دي او همسي له غوايانو ۱۳ او دوي
فصح په اور وريته کړه لکه چه دستور وه او مقدس خيزونه
ئي په کټويو او په ديګونو او په کړهيو کښ پاخه کړل او په
۱۴ دغو ټولو ښامنو دَ اُمّت ئي وويشل ۱۴ او بيا ئي دَ خپلو
ښانونو دَپاره تياري وکړه او دَ کوهينانو دَپاره ځکه چه کوهينان
بني هارون په خيزولو دَ سيزلو په قربانيو او په وازګو وو
تر شپي پوري نو هغو لاويانو دَ خپلو ښانونو دَپاره او دَ کوهينانو

بني هارون دَپاره ١٥ او سرودګران بني آسف په خپلي دريدني ١٥
باندِ وُو په موافق دَ حکم دَ داؤد او آساف او هيمان
او يدوثون رويا ليدونکي دَ بادشاه او هغه دروانان دَ
دروازي په دروازي ورلړه نه وُو چه له خپله خدمته
کوبني شِي ځکه چه دَدوي ورونړو هغه لاويانو دَدوي
دَپاره تياري کړي وه ١٦ نو په دغي ورځي کښ ټول خدمت ١٦
دَ خداوند پوره شه دَ فصح دَ کولو دَپاره او خيژول دَ
سيزلو دَ قربانيو په مذبح دَ خداوند په موافق دَ حکم دَ
يوشياه بادشاه ١٧ او هغه بني اسرائيلو چه موجود وُو په ١٧
هغه وقت کښ ئي فصح او عيد دَ فطيرو تر اوو ورځو
پوري وکړ ١٨ او په اسرائيل کښ دَ سموئيل نبي له ورځو ١٨
په دي شان فصح کړي شوي نه وه او ټولو بادشاهانو
دَ اسرائيلو داسي فصح کړي نه وه لکه چه يوشياه وکړه
او کوهينانو او لاويانو او ټول يهوداه او اسرائيل چه
موجود وُو او اوسيدونکو دَ اورشليم ١٩ په اتلسم کال ١٩
دَ يوشياه بادشاه دا فصح وکړي شه

٢٠ پس له دي ټولو چه يوشياه هغه بيت جوړ کړ نو ٢٠
دَ مصر بادشاه دَ جنګ دَپاره په کرکميش کښ په فرات
وخوت نو يوشياه ئي مخي ته ورووت ٢١ او هغه ده ته ٢١
قاصدان واستول ويل ئي څما له تا سره څه دي اي دَ
يهوداه بادشاه؟ نه په تا باندِ نن ورځ ليکن په کور دَ
جنګړي خپلي: الله امر وکړ چه بيړه وکړه نه له الله نه دَ
خپل ځان دَپاره پرېږده هغه چه له ما سره دئ او تا
دِ هلاک نه کړي ٢٢ او يوشياه خپل مخ ورنه ونه ګرزاوه ٢٢
بلکه دَده دَ جنګېدلو دَپاره ئي خپل ځان بدل کړ او دَ

نیکو کلام دَ الله له خولي نه يُ وانه وريده او راغي چه
۲۳ دَ مجدو په کندي کښ وجنګيږي ۲۳ او يوشياه بادشاه
غشي ويشتونکو وويشت نو بادشاه خپلو سړيونو ته وويل
۲۴ چه ما يوسئ ځکه چه زه ډير زخمي شوم ۲۴ نو سړيونو يُ له
هغه کاډي نه ويوست او په دويم کاډي کښ چه دَ هغه
وه سور يُ کړ او اورشليم ته يُ يوور او هغه مړ شه
او دَ خپلو پلرونو په قبرونو کښ ښخ کړي شه او ټول
۲۵ يهوداه او اورشليم په يوشياه ځانونه په ژړا کړل ۲۵ او
ارمياه په يوشياه باندِ ژړا وکړ او ټول سرودګران او سرودګري
په خپلو ويرونو کښ تر نن ورځي پوري وينا وايي او دوي
په اسرائيل باندِ حق مقرّر کړ او ګوره دغه په ويرونو
۲۶ کښ ليکلي شوي دي ۲۶ او نور حالونه دَ يوشياه او دَده
مهرباني په موافق دَ هغه چه دَ خداوند په تورات کښ
۲۷ ليکلي شوي دي ۲۷ او دَده اوّل او آخر حالونه ګوره دَ اسرائيل
او دَ يهوداه دَ بادشاهانو په کتاب کښ ليکلي شوي دي *

# شپږ ديرشم باب

۱ ۱ او دَ زمکي اُمّت يوآحاز بن يوشياه واخست او دَده
دَ پلار په عوض کښ يُ په اورشليم کښ بادشاه کړ -
۲ ۲ يوآحاز چه بادشاه شه دَ دري ويشتو کالو وه او دري
۳ مياشتي يُ په اورشليم کښ بادشاهي وکړ ۳ او دَ مصر
بادشاه دَيُ له اورشليمَ خارج کړ او زمکه يُ په سل
قنطارو دَ سپينو او په يو قنطار دَ سرو زرو پوروري
۴ کړه ۴ او بادشاه دَ مصر ايلياقيم دَده ورور په يهوداه
او په اورشليم بادشاه کړ او دَ هغه نوم يُ په يهوياقيم

بدل کړ او یو آحاز ورور یې نِکو ونیو او مصر ته یې بوت
۵ ۵ یهویاقیم چه بادشاه شه دَ پنځه ویشتو کالو وه
او یولس کاله یې په اورشلیم کښ بادشاهي وکړه او هغه
۶ دَ خداوند الله خپل په سترګو کښ بدي وکړه ۶ په دې
باندِ نبوکدنضر بادشاه دَ بابل وخوت او دَ زیړو په
۷ زنځیرونو یې بند کړ چه بابل ته یې بوزي ۷ او بعضي دَ
بیتِ یهوه له لوښو نه نبوکدنضر بابل ته یو وړل او په
۸ بابل کښ په هیکل خپل کښ یې کیښودل ۸ او نوري خبري
دَ یهویاقیم او دَده پلیتیَ چه وې کړي او هغه چه په ده کښ
موندلي شوي کوره دَ اسرائیل او دَ یهوداه دَ بادشاهانو
په کتاب کښ لیکلي دِي او یهویاکین زوی دَده دَده په ځاي
بادشاه شه
۹ ۹ یهویاکین چه بادشاه شه دَ اتو کالو وه او ده دري
میاشتي او لس ورځي په اورشلیم کښ بادشاهي وکړه او
۱۰ ده دَ خداوند په سترګو کښ بدي وکړه ۱۰ او دَ کال په
ګرزیدلو کښ نبوکدنضر بادشاه واستاوه او دَې یې بابل
ته راوست دَ بیتِ یهوه دَ پسندیده کالیو لوښو سره او
صدقیاه دَده ورور په یهوداه او په اورشلیم بادشاه کړ
۱۱ ۱۱ صدقیاه چه بادشاه شه دَ یوویشتو کالو وه او یوُلس
۱۲ کاله یې په اورشلیم کښ بادشاهي وکړه ۱۲ او دَ یهوه الله
خپل په سترګو کښ یې بدي وکړه او دَ ارمیاه هغه نبي
۱۳ دَ وړاندي دَ یهوه په حضور عاجزي و نه کړه ۱۳ او هم
له نبوکدنضر چه په الله یې قسم خوړلي وه یاغي شه
او ورنه یې ګردن کښي وکړه او دَ خداوند یهوه الله دَ
۱۴ اسرائیل له راجاروتلو نه یې خپل زړه ټینګ کړ ۱۴ او ټولو

سرډارانو دَ هغو کوهینانو هم او هغه اُمّت ډېره ډېره
بدِي زیانه کړې موافق دَ ټولو مکروهاتو دَ غیر قومونو او
بیتِ یهوه ئې گنده کړ چه ده په اورشلیم کښې مقدس کړې
۱۵ وه ۱۵ نو خداوند الله دَ پلرونو دَ دوي په لاس دَ رسولانو
خپلو ورواستاوه وقتِي پورته کیدونکَي او استونکَي وه ځکه
چه ده په خپل اُمّت او په خپل استوگنه شفقت وکړ —
۱۶ ۱۶ مګر هغوي به دَ الله په رسولانو لوبې کونکي شول او دَ ده کلام
ئې پیمال کاوه او دَ ده په نبیانو پوري ئې چغې کولې تر
دې حده چه غضب دَ خداوند په خپل اَمّت وخوت تر
۱۷ چه شِفا ئې نه وه ۱۷ نو په دوي باندِې بادشاه دَ کلدّیانو
وختژاوه او دَ دوي ځوانان ئې دَ دوي په بیت المقدس کښې
په توره قتل کړل او په ځوانانو او په پېغلو ئې شفقت ونه
کړ نه په سپین ږیري او نه په شیخ قدیم بلکه ټول ئې دَ
۱۸ هغه په لاس ورکړل ۱۸ او ټول کالِي دَ بیت الله که لوي وُو
که وړوکِي وُو او خزانې دَ بیتِ یهوه او خزانې دَ بادشاه
۱۹ او دَ ده دَ سرډارانو ئې ټولې بابَل ته یوړې ۱۹ او بیت الله
ئې وسوزاوه او دیوال دَ اورشلیم ئې ونړاوه او ټول
محلونه ئې په اور وسوځول او ټول گران بها کالِي ئې نیست
۲۰ کړل ۲۰ او هغه ټول چه له توري پاتې شول بابَل ته ئې
جلاوطنِي کړل او هغوي دَ ده او دَ ده دَ ځامنو دَ مریونو دَپاره
وُو تر دې پوري چه دَ فارس دَ ملک دَ بادشاه مملکت شه
۲۱ ۲۱ دَپاره دَ پوره کیدلو دَ کلام دَ خداوند په خولې دَ ارمیاهْ
څوچه زمکو سبّتونه ادا کړل ځکه چه هغه سبّت ومانه
په ټولو ورځو دَ ویرانې ئې اویا کاله دَ پوره کولو دَپاره
۲۲ ۲۲ او په اوّل کال دَ کورش بادشاه دَ فارس : دَپاره

دَ تمام کیدلو دَ کلام دَ خداوند په خولې دَ ارمیاه؛
خداوند روح دَ کورش بادشاه دَ فارس وپښ کړ او په
ټوله بادشاهئ خپله کښې ئې جار وواهه او هم په لیکلو
۲۳ سره ئې ویل ۲۳ چه کورش بادشاه دَ فارس داسې وائي
چه یهوه الله دَ آسمانونو ماته ټول بادشاهتونه دَ
زمکې راکړل او هغه په ما باندِ وسپارل چه ده لره
بیت په اورشلیم کښې چه په یهوداه کښې دي بنا
کړم څوک دي په تاسو کښې له ټولو اُمتونو نه چه
یهوه الله ئې ورسره وِي او ودِ خیژي ❋

# عزرا نحمیه و امتر

له اصلي عبراني ژبي نه په پښتو كښ ترجمه كړي شه




T.J.L.M.

په مدد د قاضي عبد آلرحمان او غلام جلاني كاتب

د مطبع برتش و فارن بيبل سوسيتي لندن

# د عزرا کتاب

## اوّل باب

١ آ او په اوّل کال د کورس بادشاه د فارس چه کلام د یهوه د ارمیا
له خولې نه پوره شي نو یهوه روح د کورس بادشاه د فارس
ولمڅاوه چه ده په خپلي ټولي بادشاهي کښې جار وکړ زوه او
٢ په لیکلو سره ئي هم وويل ٢ چه کورس بادشاه د فارس
داسي وايي چه یهوه الله د آسمانونو ما ته ټول بادشاهتونه
د زمکي را کړي دي او ده ما ته سپاردلي دي چه زه ده ته به
٣ یهوداه چه په اورشلیم کښې دی یو بیت بنا کړم ٣ دده په
ټول امّت کښې له تاسي نه څوک دی چه الله ورسره وي
نو اورشلیم ته چه په یهوداه کښې دی ور خیژي او بیت یهوه
الله د اسرائیل بنا دِ کړي دا هغه دی چه په اورشلیم کښې دی
٤ ٤ او هر څوک چه په یوه له ځایونو کښې باقي پاتې شوي وي
چه چرته مسافر شوي وي نو د هغه ځاي استوري دِ په سپینو
او په سرو زرو او په مال مویشي او په څارویو د هغه مدد دِ
وکړي سره له دغو فدا قربانیو د هغه الله د بیت د پاره چه
٥ په اورشلیم کښې دی ٥ نو د یهوداه او د بنیامین پلارني
سرداران او کوهینان او لاویان سره له هغو ټولو چه الله ئي
روح لمڅاوه پورته شول چه و خیژي او بیت یهوه بنا کړي چه
٦ په اورشلیم کښې دی ٦ او ټولو چه د دوي چار پېره وو د سپینو
او د سرو زرو په لوښو او په مال مویشي او په څارویو او په
تحفیو ئي د دوي ټکره کاوه زیات له هغو ټولو چه په فدا قرباني

۷ کړي شوي وو ۷ او هغه بادشاه کورس د بیت یهوه لوښي چه
نبوکدنځر له اورشلیم وړلي وو او د خپلو خدایانو په کورکښې
۸ کیښودلي وو را ویستل ۸ او کورس بادشاه د فارس د مترادات
هغه گنجوار په لاس را ویستل او شیشبځر امیر د یهوداه ته ئي
۹ ورو گڼړل ۹ او دا د هغو شمار دوه - دېرش کره تالکي د سرو زرو او
۱۰ یو زر کره تالکي د سپینو زرو او نه ویشت چړوگي ۱۰ او دېرش
کټوري د زرو او څلور سوه او لس کټوري د دوهمي درجي د
۱۱ سپینو زرو او یو زر د نورو لوښو ۱۱ ټول لوښي د سرو زرو او
د سپینو پنځه زره او څلور سوه دا ټول واړه شیشبځر یووړل
هغه وقت چه جلاوطني ئي له بابل نه واورشلیم ته خیژول

# دوهم باب

۱ ۱ او دغه هغه د صوبي زامن دي چه د بندیوانو له جلاوطني
راختلي وو هغوي چه د بابل بادشاه نبوکدنځر بابل ته په
جلا بیولي وو او اورشلیم او یهوداه ته بیرته راغلل هر سړي
۲ خپل ښهر ته ۲ هغوي چه له زربابل سره راغلل یشوع نحمیاه
سرایاه رعلایاه ماردکي بلشان مسپار بغوي رحوم بعنه
۳ شمار د کسانو د اسرائیل دادي ۳ بني فروش دوه زره او یو
۴ ۵ سل دوه اویا ۴ بني شفطیاه دري سوه دوه اویاه ۵ بني آرح
۶ اوه سوه پنځه اویا ۶ بني فحت مواب له بني یشوع او یوآب دوه
۷ زره او اته سوه دولس ۷ بني عیلام یو زر دوه سوه او څلور پنځوس
۸ ۹ ۸ بني زتو نه سوه او پنځه څلویښت ۹ بني زکاي اوه سوه او
۱۰ ۱۱ شپیته ۱۰ بني باني شپږ سوه او دوه څلویښت ۱۱ بني ببیاي
۱۲ شپږ سوه او دري ویشت ۱۲ بني عزجاد یو زر او دوه سوه او
۱۳ دوه ویشت ۱۳ بني ادونیکام شپږ سوه او شپږ شپیته

١٤ بني بغواي دوه زره او شپږ پنځوس ١٥ بني عادين څلور سوه ١٤ ١٥
څلور پنځوس ١٦ بني آطير له يحزقياه نه اته اونوي ١٧ بني ١٦ ١٧
بيځاي دري سوه او دري ويشت ١٨ بني يوراه يوسل دولس ١٨
١٩ بني حاشوم دوه سوه او دري ويشت ٢٠ بني جبّار پنځه ١٩ ٢٠
نوي ٢١ بني بيت لحم يوسل او دري ويشت ٢٢ د نطوفاه ٢١
کسان شپږ پنځوس ٢٣ د عناتوت کسان يوسل او اته ويشت ٢٢ ٢٣
٢٤ بني عزماويت دوه څلويښت ٢٥ بني قريت عاريم کفيره او ٢٤ ٢٥
بئيروت اوه سوه او دري څلويښت ٢٦ بني رامه او جبع شپږ ٢٦
سوه او يو ويشت ٢٧ د مکماص سړي يوسل او دوه ويشت ٢٧
٢٨ د بيت ايل او د عاي کسان دوه سوه او دري ويشت ٢٨
٢٩ بني نبو دوه پنځوس ٣٠ بني مغبيش يوسل او شپږ پنځوس ٢٩ ٣٠
٣١ بني عيلام اخران يو زر او دوه سوه او څلور پنځوس ٣٢ بني ٣١ ٣٢
حاريم دري سوه او شل ٣٣ بني لود حاديد او اونو اوه سوه او ٣٣
پنځه ويشت ٣٤ بني اريحاه دري سوه او پنځه څلويښت ٣٥ بني ٣٤ ٣٥
سناءه دري زره او شپږ سوه او ديرش ٣٦ کوهينان بني يدعياه ٣٦
د يشوع د کور نو سوه او دري اويا ٣٧ بني امير يو زر او دوه پنځوس ٣٧
بني فشحور يو زر دوه سوه او اوه څلويښت ٣٩ بني حاريم يو ٣٨ ٣٩
زر او اوه لس ٤٠ هغه لاويان بني يشوع او قدميل له بني ٤٠
هُدوياه څلور اويا ٤١ هغه سرودګران بني آساف يوسل او ٤١
اته ويشت ٤٢ د دروانانو اولاد بني شلوم بني اطير بني طلمون ٤٢
بني عقوب بني حطيطا بني شوبای هغه ټول واړه يوسل او نه
ديرش ٤٣ هغه نتينيم بني ضيحا بني حسوفا بني طبّاعوت ٤٣
٤٤ بني قيروس بني سيعها بني فادون ٤٥ بني لبانه بني حجابه ٤٤ ٤٥
بني عقوب ٤٦ بني حاجاب بني شملي بني حانان ٤٧ بني ٤٦ ٤٧
جديل بني جحار بني رايا ٤٨ بني رصين بني نقودا بني جزّام ٤٨

۴۹ ۵۰ ۴۹ بني عزّا بني فاسیح بني بیتخای ۵۰ بني آسنه بني معونیم بني
۵۱ ۵۲ نفوشیم ۵۱ بني بقبوق بني حقوفا بني حرحور ۵۲ بني بخلوث بني
۵۳ ۵۴ محیدا بني حرشا ۵۳ بني برقوس بني سسیرا بني ثامح ۵۴ بني
۵۵ نخیح بني حطیفا ۵۵ د سلیمان د مریونو اولاد د بني سوطي
۵۶ ۵۷ بني هسوفرت بني فرودا ۵۶ بني یعلاه بني درقون بني جدّیل
۵۸ ۵۷ بني شفاطیا بني حطیل بني فوکرت هخیبایم بني آمي ۵۸ ټول
هغه نثنیم او د سلیمان د مریونو زامن دري سوه او دوه نوي
۵۹ ۵۹ او دا هغه دي چه له تل ملح تل حرشا کروب آدان امیر
ختلي وو او دوي نه توانیدل چه خپل پلارني کور او خپل نسل
۶۰ ئي ښرګند کړي چه که چیري دوي له اسرائیل وي ۶۰ بني دلایاه
۶۱ بني طوبیاه بني نقوداه شپږ سوه او دوه پنځوس ۶۱ او کوهیانو له
اولاده بني حبایاه او بني هقوځ بني برزّلاي هغه چه ښځه ئي د
برزّلاي هغه جلعادي له لونړو واخستله او ده د هغه په نوم نومړه
۶۲ شه ۶۲ دوي هغو نسبنامو والوله خپل کتابت ولټوه مګر موندله
۶۳ نه شه دي د پاره دوي له کوهینت پلیت وګڼلي شول ۶۳ او دوي
ته هغه ترشاتا وویل چه ترڅو پوري چه یو کوهین له اوریم او له
۶۴ تمیم پورته نه شي دوي د قدوس المقدسانو نه نه خوري ۶۴ ټول
جمعیت لکه یو سره دوه څلویښت زره او دري سوه شپیته وو
۶۵ ۶۵ بي د دوي له وینځو او مریونو دغه خو اوه زره دري سوه
اوه دیرش وو او له دغونه دوه سوه سرودګران او سرودګړي
۶۶ وي ۶۶ او د دوی آسونه اوه سوه او شپږ دیرش وو د دوي
۶۷ کچري دوه سوه او پنځه څلویښت وي ۶۷ د دوي اوښان څلور
سوه او پنځه دیرش وو د دوي خرونه شپږ زره او اوه سوه او
۶۸ شل وو ۶۸ او څنو له پلانیو سردارانو چه په اورسلیم کښې بیت
یهوه لره راغلل نو په فداسره ئي د بیت الله د پاره قربان کړل

تاچه هغه بیا په خپل مقان کښې ودرولي شي ٦٩ دوي د ٦٩
خپل طاقت په موافق د کاریگري د خزاني د پاره یو شپیته زره
دارا کماني د سرو زرو او پنځه زره منه تبریز سپین زر او د کوهینانو
یو سل کتاني جامي ورکړل ٧٠ نو هغه کوهینان او لاویان او څني ٧٠
له امّت نه او سروکران او دروانان او هغه نتنیم په خپلو
خپلو ښهرونو کښې اوسیدل او ټول اسرائیل په خپلو ښهرونو
کښې ٭

## دریم باب

آ او چه اوومه میاشت لګیا شه او بني اسرائیل په خپلو ١
ښهرو کښې وو نو امّت د یوه سړي په شان اوشلیم ته
جمع شه ٢ او یشوع بن یوصاداق او د ده ورونړه هغه ٢
کوهینان او زربابل بن شالتئیل او د ده ورونړه پورته شول
او د اسرائیل د الله مذبح ئې بنا کړ چه په هغه باندي د سیزلو
قربانئې وخیژوي لکه چه د موسي مرد الله په توریت
کښې لیکلي شوي دي ٣ او هغه مذبح ئې د هغه په کرسي ٣
باندي ودراوه ځکه چه د هغو ملکونو له قومونو په دوي باندي
خوف وه او دوي یهوه لره په هغه باندي د سیزلو قربانئې
خیژولي د صبا او د بیګا ٤ او دوي د جنګړي عید په عمل ٤
راوړ لکه چه لیکلي شوي دي او د سیزلو قربانئې د ورځي ورځي
په شمار سره د ورځي ورځي د دستور په موافق ٥ او پس ٥
له دغه مدامي د سیزلو قرباني او د نویو میاشتو او د
یهوه ټول عیدونه هغه مقدسان او د هر هغه چه به په
فدا سره یهوه لره فدا قرباني کیري راوړل ئې ٦ د اوومي میاشتي له ٦
اوّلي ورځي به دوي یهوه لره د سیزلو د قرباني خیژولو

شروع وکړه او لا تر اوسه د خداوند د هیکل بنیاد ایښې نه وو
۷ ۷ او دوی سنګتراشونو او ترکاڼانو ته سپین زر ورکړل او
صیدونیانو ته او صوریانو ته خوراک او څښاک او تیل ورکړل
چه د لمنځي وني له لبنان د یافو دریاب ته راوړي د کورس
بادشاه د فارس د رضانامې په موافق په دوی باندې
۸ ۸ او په دویم کال د راتلو د دوی و بیت الله ته په اورشلیم کښې
په دویمې میاشتې زرُبابل بن شالتئیل او یشوع بن یوځاداق
او نورو ورونړو د دوی چه کوهینان وو او لاویانو او هغو ټولو
چه له بیرته وتني د اورشلیم راغلي وو شروع وکړه او لاویان
ئې چه شل کالیئ هلک یا څه د پاسه وو د بیت یهوه د پاره د
۹ ناظریدلو مقرر کړل ۹ او یشوع او د ده زامن او د ده ورونړه او
قدمئیل او د ده زامن بني یهوداه لکه یو ځان و دریدل چه
په بیت الله کښې په کاردارانو باندې ناظري کوي بني حینا داد
۱۰ د دوی د زامنو او د دوی د ورونړو هغه لاویان ۱۰ او چه معمارانو
د یهوه د هیکل بنیاد کیښود نو دوی هغه کوهینان په جامو
پوښیده کړي په تُوریو سره او هغه لاویان بني آصف په
ژنګونو سره مقرر کړل چه د اسرائیل د بادشاه داؤد په دستکاري
۱۱ باندې د یهوه ثنا وکړي ۱۱ او دوی په ثنا او په حمد یهوه لره یو
تر بله سرود وغږاوه څکه چه دي **نیک** دئ څکه چه د
ده مهرباني په اسرائیل باندې تر ابده پوري دي او ټول امّت
د یهوه په ثنا کولو لوي هواه وکړ د بیت یهوه د بنیاد بردلو
۱۲ په سبب ۱۲ لیکن ډیرو له کوهینانو او له هغو لاویانو او پلارنیو
سردارانو چه سپینږیري وو او چه هغه ورنبنئ کور ئې لیدلي
وو هر کله چه د دي بیت بنیاد د دوی د سترګو د وړاندې
کیښودلي شه په لوي آوازئ وژړل او ډیرو په آوازونه د خوښئ

۱۳ په هواه پورته کړل ۱۳ هسي چه امّت د خوښي هواه آواز د امّت
د ژړا له اواز نه امتیاز کولي نه شه ځکه چه هغه امّت
په لوی هواه سره ناري وهلي او هغه اواز تر لرې پورې اوریدلی شه

# ځلورم باب

۱ آ او چه د یهوداه او د بنیامین دښمنانو واوریدل چه د
۲ جلاوطني زامن د یهوه الله د اسرائیل هیکل جوړوي ۲ نو
دوي زرّبابل ته او د پلانیو سردارانو ته ور نژدي شول او ورته
ئې وویل چه مونږ به هم له تاسي سره بنا کوو ځکه چه
مونږ ستاسي په شان ستاسو د الله طلب کوو او مونږ د
آصرحدون بادشاه د آشور له ورځو نه چه مونږ ئې دلته را
۳ وخیژولي ورته ذبحه کونکي یو ۳ او دوي ته زرّبابل او یشوع
او نورو سردارانو د اسرائیل وویل چه ستاسو له نشته چه
له مونږ سره ځمونږ د الله بیت بنا کوئ مګر مونږ خو یواځي
یهوه الله لره الله د اسرائیل ته بیت جوړ کړو لکه چه مونږ
۴ ته کورش شاهِ فارس فرمایلي دي ۴ او د ملک خلقو
د یهوداه د خلقو لاسو ته سُست کونکي وو او له بنا
۵ کولوئ پریشان کړل ۵ او په دوی باندي د رشوت
صلاحکاران آخستونکي وو چه د دوي مصلحتونه باطل
کړي تولي ورځي د کورش شاهِ فارس او تر داریاوش
۶ شاهِ فارس پوري دا حال وه ۶ او د احشویروش په
بادشاهي کښي د ده د بادشاهي په شروع کښي دوي
د یهوداه او د اورشلیم په اوسیدونکو شیطاني ولیکه
۷ ۷ او د ارتحششتا په ورځو کښي بشلام او مثرداث
او طبئیل او د دوي نورو ملګرو ارتحششتا شاهِ فارس ته

ولیکه

لیکله او هغه نوشته په آرامي حرفونو لیکلې وه او ترجومه ئې هم
۸ په آرامي وه ۸ رحوم خاوند حکم خاص او شمشاي کاتب یوه
اجر نامه په اورشلیم باندي ارتحششتا بادشاه ته داسي ولیکله
۹ ۹ پس له ادب الآداب رحوم میر خوند شاه او شمشي
کاتب او د دوي نورو هم نامان دینیان او افرسثکیان طرپلیان
۱۰ او افارسیان او ارکویان او بابلیان شوشنکانیان ۱۰ او دهوئیان
او عیلامیان او نور قومونه د جلا وطني د آسنپر بزرگ الکرام
راوستل او د سامره په ښهرونو کښي ئې واوسول د نهر په
۱۱ پوري غاري وغیره ۱۱ او د هغې خط نقل چه دوي ورلره
په ارتحششتا بادشاه ته واسوله داوه ستا هغه مریونه
۱۲ کسان چه د نهر په پوري غاري دي وغیره ۱۲ بادشاه ته د
معلومه وي چه هغه یهودیان چه ستا له طرف نه په مونږ
باندي راختل اورشلیم ته راغلي دي او هغه یاغي او بد ښهر
بنا کوي او دیوالونه ئې پوره کړل او اساسونه ئې وګنډل
۱۳ ۱۳ نو اوس د بادشاه ته معلومه وي چه که دا ښهر بنا کړي
شي او دیوالونه ئې پوره شي نو به نه جزیه او نه به محصول
او نه به راهداري ادا کړي نو بادشاهانو ته به اخیر نقصان
۱۴ ورسیږي ۱۴ او اوس په دې قبول سبب چه مونږ د بادشاه
د محل نمک خواره یو او مونږ ته لایقه نه ده چه د بادشاه
عورات نقصان ووینو دي د پاره مونږ درواستوله بادشاه
۱۵ ته مو معلوم کړل ۱۵ تاچه تحقیقات ستا د پلرونو د دفتر
په کتاب کښي کړي شي نو ته به د دفتر په کتاب کښي وموې
او ته به پوه شي چه دا ښهر یاغي ښهر دې او بادشاهانو
او صوبو ته نقصان سند دې او له قدیمو ورځو ئې د دې
په مینځ کښي ښدتداري کړي دي د دې د پاره دغه ښهر

١٦ ویران کړې شوي وه ١٦ او مونږ بادشاه پوه کوو چه که دا
ښهر بنا کړې شي او دیوالونه ئې پوره کړې شي نو په دې
سبب کښې تا لره به پوري غاړې د دریاب هیڅ بخره نه وي
١٧ ١٧ نو بادشاه رحوم میرِ خوندِ شاه ته او شمشي کاتب
ته او نورو همنامانو ته چه په سامریه کښې اوسیدل
او هغو نورو باقیه وُ ته چه په پوري غاړې د دریاب وو
١٨ پیغام واستاوه - سلام - وغیره - ١٨ هغه نوشته نامه
چه تاسو ماته را استولې وه ښما د وړاندې په صاف
١٩ طور سره ولوستلې شوه ١٩ او له ما خوند لاره او تلاش
ئې وکړه او وموندلې شه چه دغه ښهر له عالمو ورځو په
بادشاهانو باندې ځان هسک کړې دی او په دغه کښې
٢٠ یاغیتوب او شدّت داري جوړ کیږي ٢٠ او په اورشلیم کښې
ډیر زوراور بادشاهان وو او د دوي د نهر په ټولي پوري
خواؤ سلطنت کړې ده او هغه دوي ته جزیه او محصول
٢١ او راه داري ورکړې شه ٢١ نو اوس فرمان طعام وکړئ
چه د دغو کبروانو کار باطل کړې شي او چه دغه ښهر بنا کړې
٢٢ نه شي څو چه له مانه فرمان طعام صادر نه شي ٢٢ خبردار
شئ چه په دې کار کښې ګمراهي ونه کړئ څله دِ د بادشاهانو
٢٣ د نقصان د پاره ضرر لویږي ٢٣ پس له دې چه د
ارتحشتته بادشاه نوشته خط نقل د رحوم او د شمشي
کاتب او دوي د همنامانو د وړاندې ولوستلې شه نو
دوي په تړپ سره اورشلیم ته په یهودیانو باندې ورغلل
٢٤ او هغوي ئې په زور د بازو او په قوّت باطلول ٢٤ پس له دې
کار خدمت د بیت الله چه په اورشلیم کښې وه باطل شه
او تر دویمه کاله د بادشاهي د داریاش بادشاه د فارس پوري
باطل وه ※

# پنځم باب

١ آ او حجي نبي او زکريا ابن عدو نبيان هغو يهوديانو ته
چه په يهوداه او په اورشليم کښې وو هغو په هغوي باندې
٢ د الله د اسرائيل په نوم نبوّت وکړه ٢ پس له هغه زربابل
زوي د شالتيل او يشوع زوي د يوصاداق پورته شول او
د بنا کولو د بيت الله چه په اورشليم کښې ده شروع ئې وکړه
٣ او له دغو سره انبياؤ د الله هم مددکاران وو ٣ په هغې زمانې
د پورې غاړې پيشوا تتناي او شتربوزناي او د دغو همنامانو
ورته راغلل او دوي ته ئې داسې وويل چه چا تاسې ته شاهي
خوند حکم درکړې دې چه دا بيت بنا کړئ او چه هغه ديوال
٤ پوره کړئ ٤ پس له دغه مونږ داسې ورته وويل چه د هغو
٥ کبروانو څه نومونه دي چه دا بنيان بنا کوي ٥ او د
يهوديانو په سپينږيرو د دوي د الله سترګې وې او هغو
باطلولې نه شول ترڅو پورې چه دغه خوند حال داريوس
ته ورسيد له او پس له دغه د وشته نامه په دې کار
٦ باند تميز کړې شي ٦ د هغې اګاه نامې نقل خط چه تتناي
صوبه دار د نهر د پورې غاړې او شتربوزناي او د ده همنامو
افرسکيان چه د نهر په پورې غاړې دي داريوس بادشاه ته
٧ واستوله ٧ دوي هغه ته پيغام واستوه او په هغه کښ
٨ داسې ليکلي وو ٨ داريوس بادشاه ته د تول قسم سلام
بادشاه ته دې معلوم وي چه مونږ د يهوداه صوبې ته روان
شولو د لوي الله بيت ته او هغه په لويو کاڼو جوړيږي او په
ديوالو کښ لرګي ږدلې شي او دا کار خدمت په فرنانې سره
٩ خدمت کيږي او د دوي په لاسونو کاسياب کيږي ٩ پس
له دغه مونږ له هغو سپينږيرو پښتنه وکړه او داسې مو ورته

ووېل چه تاسې ته د دې بيت د بناکولو او د دې دېوالونو
۱۰ د پوره کولو حکم څوند شاه چا کړې دئ ؟ ۱۰ او د هغو د
نومونو پښتنه موهم وکړه چه در و ئې ښيو چه د
هغو کبروانو نومونو وليکو چه د دوی سرداران وو
۱۱ ۱۱ او دوی داسې پيغام راپوهولو ويل ئې چه مونږ د آسمان
او د زمکې د الله هغه بندګان يو او دا بيت بناکوو چه
له قديمو کالونو ډېر وړاندې بنا شوې وه او دغه د اسرائيل
۱۲ يوه لوی بادشاه بنا کړ او پوره ئې کړ ۱۲ مګر پس له هغه چه
څمونږ پلرونو د آسمان الله په غصه کړ نو دوی ئې د
نبوکدنصر بادشاه د بابل په لاس ورکړل هغه کسدې
چه دا بيت ئې ستره کاوه او امّت ئې بابل ته په بندبوت
۱۳ ۱۳ ليکن په اوّل کال د کورس بادشاه چه د بابل بادشاه وه
۱۴ کورس د دې بيت الله د بنا کولو حکم څوند وکړ ۱۴ او هم
د دې بيت الله د سرو او د سپينو زرو لوښې چه نبوکدنصر
له هغه هيکل چه په اورشليم کښې وه ايستلې وو او هغه
هيکل ته چه په بابل کښې وه ئې وړې وو کورس بادشاه
هغوې له هغه هيکل چه په بابل کښې وه راوايستل او يو
۱۵ شيشبضر نومې ته چه ده پيشوا کړې وه ور ئې کړل ۱۵ او
هغه ته ئې ووېل چه دا لوښې واخله روان شه او هغه
هيکل ته ئې ور وړه چه په اورشليم کښې دې او بيت الله
۱۶ د په خپل ځاې بنا کړې شې ۱۶ پس له دې دغه شيشبضر
راغې او بنياد د بيت الله چه په اورشليم کښې دې ئې اساس
کيښود او له دغه وقت تراوسه پورې بنا کيږې او لا سليم
۱۷ نه دې ۱۷ او اوس که د بادشاه په نزد ښه وې نو د بادشاه په
خزانې کښې چه هلته په بابل کښې ده تالاش د وکړې شي

که چرې داسې وي چه کورش بادشاه له طرفه حکم خوند
د دې بیت الله د بنا کولو چه په اورشلیم کښې دې لګیا شد
که نه او په دې خبرې کښې دِ بادشاه خپله رضامندي
را واستوي ٭

## شپږم باب

۱ آ او داریاش بادشا حکم خوند وکړ چه په هغه بیت
الکتب کښې چه هلته خزانې کیښودلې شوي په بابل
۲ کښې تلاش دِ وکړې شي ۲ نو په احمتا په محل کښې د
مادیانو په صوبې کښې دې یو مجلد نغښت وموندہ شه
۳ او داسې دفتر په کښې لیکلې وه ۳ د کورس بادشاه
په اوّل کال کورس بادشاه: په باب د بیت الله چه په
اورشلیم کښې دې حکم خوند کیښود: چه هغه بیت دِ
بنا کړې شي هغه ځاې چه ذبیحې ذبح په کښې کوي او
اساسونه ئې دِ مضبوط ودرولې شي او د هغه اوچت
والې دِ شپیته هاتې او پلن والې دِ هم شپیته هاتې وي
۴ ۴ درې پیوند شوي صفونه دِ د جلیلو کانړو وي او یو
صف د نویو لرګو او خرڅ دِ د بادشاه له کوره وکړې شي
۵ ۵ او د بیت الله د سرو او د سپینو زرو لوښي هم چه
نبوکدنضر له هغه هیکل چه په اورشلیم کښې دې را
یستلې وو او بابل ته ئې بیولې وو بیرته دِ ورکړې شي
او تلل دِ وي هغه هیکل ته چه په اورشلیم کښې دې
۶ خپلو ځایونو ته او په بیت الله کښې دِ یښې وي ۶ نو
اوس د نهر د پورې خواه پیشوا تتنې او شترېوزناې
او د دوي همنامان ستاسې هغه افرسکاې چه له نهر پورې

خوا دي تاسي له هغه ځاي نه لري شئ ٧ تاسي دي ٧
بيت الله کار خدمت پرېږدئ: دغه پېشوا د يهوديانو
او د يهوديانو سپينږري دِ بيت الله دهغه په ځاي
باندي بنا کړي ٨ بي له دي حکم خوند کوم چه تاسو د ٨
دغو يهوديانو د سپينږريو سره د دي بيت الله د بنا
کولو د پاره څه به کوئ - دا - چه د بادشاه دکټلو يعني
د درياب د پوري خوا د جزيي دِ دغو کبروانو ته خرڅ
نرناني سره ورکړي شي چه باطل دِ کړي نه شي ٩ او هرڅه ٩
چه د دوي په کار وي سخي او ګډان او پسرلي د آسمان
د الله د سيځلو د قربانيو د پاره او غنم او مالګه او شراب او
تيل هرهرڅه دهغو کوهينانو د امر کولو په موافق چه
په اورشليم کښي دي بي عذره او بي غلطي ورځ په ورځ
دِ هغو ته ورکولي شي ١٠ تاچه دوي خوشبويه قرباني ١٠
د آسمان و الله ته تيره کوي او د بادشاه او د ده د زامنو
د ژوندون د پاره دعا غواړي ١١ او ما حکم خوند کيښودلي ١١
دئ چه هرهغه څوک چه دا پيغام تبديل کړي نو د
هغه له کور تيرونه دِ وکاږلي شي او پري دِ اويزاند کړي
او دار دِ کړي شي او د دي خبري د پاره دِ دهغه کور
ځاي ضرور دِ کړي شي ١٢ او هغه الله چه خپل نوم ئې ١٢
هلته يښئ دئ ټول بادشاهان او خلق دِ وغوزوي چه
دا بيت الله دغه چه په اورشليم کښي دي د بدل
او د نيست کولو د پاره لاس وراږد کړي : ما داريا ش
حکم خوند وکړ از فرناني سره دِ په خدمت راولي شي
١٣ نو د درياب د پوري خوا پيشوا تتني او شتربوزني ١٣
او د دوي همنوهان دهغه په موافق چه داريا ش

بادشاه ورواستاوه ازفرناني سره ئې په خدمت راوړل
١٤ ١٤ نو د يهوديانو سپينږيري بنا كونكي وو او د حجي نبي او د ذكرياه
بن عيدو په نبوت سره كامياب شول او دوي د اسرائيل
د الله د شاهي خوند په موافق او د كورس او د دارياس
او ارتحششتا بادشاهان د فارس د شاهي خوند په موافق
١٥ بنا وكړل او تمام ئې كړ ١٥ او دا بيت د ادار په مياشتي كښې
په دريم تاريخ چه د دارياس بادشاه د بادشاهي شپږم كال
١٦ وه تمام شه ١٦ او بني اسرائيل او كوهينانو او لاويانو او باقي
د جلاوطني زامنو د دې بيت الله مخصوص په خوښئ
١٧ سره په خدمت راوړل ١٧ او دوي د دې بيت الله د مخصوصي
د پاره سل غوايان او دوه سوه موړونه او څلور سوه پسيرلي
قربان وكړل او د تمول اسرائيل د خطا د قرباني د پاره
دوولس سيرلي د وزونو د دوه لسو فرقو د اسرائيل د شمار
١٨ په موافق ١٨ او دوي هغه كوهينان د دوي د ويشونو په
موافق او هغه لاويان د دوي د حلقيو په موافق د هغه
الله د عبادت د پاره چه په اورشليم كښې دي لكه چه
د موسى په كتاب كښې ليكلي دي
١٩ ١٩ او د اوّلي مياشتي په څلورلسم تاريخ د جلاوطني ځامنو
٢٠ عيد فصح عمل وكړ ٢٠ ځكه چه كوهينانو او لاويانو خپل ځانونه
لكه يو ځان پاک كړي وو او تمول واړه پاک شوي وو نو دوي
د جلاوطني د تمولو ځامنو د پاره او د هغو كوهينانو د دوي ورونړو
٢١ د پاره فصح ووازه ٢١ او بني اسرائيل هغه چه له جلاوطني جاراغللي
شوي وو او تمول چه د زمكي د قومونو له گنديتوب نه خپلو
ځانونو ئې بيل وبدل كړي وو تا چه د يهوه الله د اسرائيل
٢٢ ولټوي فصح ئې وخوړ ٢٢ او دوي په خوښئ سره اوه

ورځي

ورځي د فطيرو اووه يو عيد په عمل راوړو ځکه چه خداوند
دوي خوشحال کړي وو او د آشور د بادشاه زړه ئې دوي
په لوري کرز ولي وه چه بيت الله د الله د اسرائيلو په
کاريګري کښې د هغو لاسونو تکړه وکړي ※

# اووم باب

۱ پس له دې خبرو د فارس د بادشاه ارتحششتا په ۱
بادشاهي کښې عزرا بن سرايا بن عزرياه بن خلقياه
۲ بن شلوم بن صدوق بن اخيطوب ۳ بن امرياه ۲،۳
بن عزرياه بن مرايوث ۴ بن زراياه بن عزي بن بقي ۴
۵ بن ابيشوع بن فينحاس بن العازار بن اهرون ۵
هغه سردار کاهن ۶ دغه عزرا له بابل نه وختوت او ده ۶
په هغه توريت د موسي کښې چه خداوند يهوه
الله د اسرائيل ورکړي وه خوش نويس کاتب وه او
بادشاه ده ته لکه تمول الهونه ئې ورو بخښله لکه لاس
د يهوه الله په ده باندې وه ۷ او له بني اسرائيل او له هغو ۷
کوهينانو او لاويانو او له سرودکرانو او له دربانانو او د
هيکل له بندګانو ځني د ارتحششتا بادشاه د بادشاهي
په اووم کال کښې اورشليم ته وختل ۸ او دا په پنځمي ۸
مياشتي چه د هغه بادشاه اووم کال وه اورشليم ته
ورسيده ۹ ځکه چه د اولي مياشتي په اوّل تاريخ بنياد ۹
د بابل د ختلو ئې کيښود او د پنځمي مياشتي په وړومبي
تاريخ ده اورشليم ته ورسيده لکه لاس د ښيګړي
د الله د ده ور باندي وه ۱۰ ځکه چه عزرا خپل زړه تيار ۱۰
کړي وه چه د خداوند د تورات طلب وکړي او چه

هغه په عمل راوړي اوچه د اسرائيل په مينځ کښې د
فرضونو او عدالتونو تعليم ورکړي
۱۱ ۱۱ او دا نقل خط د هغه نوشته چه هغه بادشاه
ارتحششتا عزرا هغه کوهين او کاتب ديهوه د فرضونو
او حقونو د کلامونو په اسرائيل باندې وه : دغه دے
۱۲ ۱۲ ارتحششتا شاهنشاه هغه عزرا کوهين کاتب داته لره
د آسمان د الله ساهيرَ وغيره
۱۳ ۱۳ زه حکم خوندکوم چه ځما په بادشاهي کښې هغه ټول چه د
اسرائيل له خلقو او د دوي له کوهينانو او لاويانو چه خپل
ښانونه نقل کوي چه اورشليم ته ځي له تا سره دِ لاړشي
۱۴ هرکله چه ته د بادشاه له قدمَ او د هغه له اوو صلاح کارانو
له طرفَ استولي کيږي چه ته د خپل الله د داد په موافق
چه ستا په لاس کښې دي په يهوداه باندِ او اورشليم لره
۱۵ تحقيقات وکړي ۱۵ او چه هغه سپين او سره زر ووړي
چه بادشاه او د ده صلاح کارانو نفل کړي دي د اسرائيل
۱۶ د الله د پاره چه مسکن ئې په اورشليم کښې دیَ ۱۶ او ټول
سپين او سره زر چه ته ئې د بابل په ټولي صوبې کښې
کټلي شي له هغو نفل قربانيو سره چه هغه امّت او هغه
کوهينان ئي د خپل الله د بيت د پاره چه په اورشليم
۱۷ کښې دیَ خپلو ښانونو سره نفل قرباني کونکي دي ۱۷ په دی
سبب هم ازفوناني سره په دغو نقديو غوايان او موږونه
او پسولي او د دوي د اوړه هديي او د دوي د تويولو قربانيو ويرئ
او په هغه مذبح باندِ چه په بيت الله کښې دیَ په اورشليم
۱۸ کښې به قرباني کوي ۱۸ او هرڅه چه تا ته او ستا ورونړو ته
ښه ښکارېږي په باقي سپينو او سرو زرو سره خدمت کوئ

۱۹ نو د خپل الله د رضامندي په موافق ئې خدمت کوئ ۱۹ او
هغه لوښي چه د ستا د الله د بيت د عبادت د پاره ورکړې
۲۰ شوي دي هغه د اورشليم د الله په قدم ادا کړئ ۲۰ او ستا
د الله د کور باقي پوکار څيزونه چه به تا ئې ورکول پرېوزي
۲۱ هغه دي د بادشاه له بيت الکنج ورکوه ۲۱ او زه هو زه
ارتحششتا بادشاه د درياب د پوري خوا هغو ټولو
گنجبارانو ته حکم کوند د داوم چه هرڅه چه عزرا هغه
کوهين : کاتب داد د آسمان د الله له تاسو وغواړي
۲۲ هغه دِ ازفرناني سره په خدمت راوړلي شي ۲۲ تر سلو
قنطارو سپينو زرو او تر سلو کړو غنمو او تر زر بټونو
شرابو او تر سلو بټو تيلو پوري او مالګه لا ليکني ليکنه
۲۳ ۲۳ هرڅه چه د آسمان د الله له خوند کيږي هغه دِ د
آسمان د الله د بيت د پاره ازدرستي سره په خدمت
دِ راوړلي شي ولي دِ د بادشاه او د ده د زامنو په بادشاهي
۲۴ باندِ قهر پرېوزي ۲۴ او تاسو لره پوهونکي يو چه په ټولو
کوهينانو او له لاويانو او زمزمه بانو او دروانانو او نثنيانو بلکه
او عبادت والو د دي بيت الله جزيه محصول او راه داري
۲۵ ټکول اختيار نشته ۲۵ او اي عزرا ته د خپل الله د هغه
حکمت په موافق چه ستا په لاس کښي دي قاضيان
او ديوانان مقرر کړه چه د وي ديوانان وي د درياب د
پوري غاړي د ټولو امّت د پاره هغو ټولو د پاره چه ستا
د الله دادونه پيژني او تاسي هغو نه چه نه ئې پوهيږي
۲۶ ور و پوهوائ ۲۶ او هرڅوک چه ستا د الله داد او د بادشاه
داد عبادت ونه کوي نو ازفرناني سره دِ ديوان پري
جوړولي شي: يا موت د پاره يا د شړلو د پاره يا د دولت

د جريمانو

د جرمانو د پاره يا د اسير كولو د پاره وي ❊
٢٧ ٢٧ مبارك دِ وي يهوه څښتن د پلرونو الله چه د بادشاه
په زړه كښې لكه دغه كيښودلي دي چه هغه بيت يهوه
په اورشليم كښې ښايسته كړي او چه په ما باندي يې د
٢٨ بادشاه او د ده د صلاحكارانو ٢٨ او د بادشاه د ټولو سردارانو
د جبارانو د وړاندي يې مهرباني غوړولي ده او زه په خپل ځان
ټكره شوم لكه لاس د يهوه الله ځما : په ما باندِ وه او ما
له اسرائيله سرداران جمع كړل چه له ما سره وخيژي ❊

# اتم باب

١ ١ او دغه د دوي پلارني سرداران دي او دا د هغو نسب نامه
ده چه د هغه بادشاه ارتحشستا په بادشاهي كښې له بابل
٢ له ما سره راوختل ٢ له بني فنيحاص جرشوم له بني
٣ ايثامار دانيال له بني داوُد حطّوش ٣ له بني شكنياه
له بني فرعوش زكرياه او له ده سره په نسب نامه نارينه
٤ سل پنځوس ٤ له بني فحث مواب اليهوعيناي بن زرحياه
٥ او ور سره دوه سوه نارينه ٥ له بني شكنياه بن يحزئيل او
٦ ور سره دري سوه نارينه ٦ او له بني عادين عبد د يوناثان زوي
٧ او ور سره پنځوس نارينه ٧ له بني عيلام يشعياه بن عثلياه
٨ او ور سره اويا نارينه ٨ او له بني شفطياه نه زبدياه بن
٩ ميكائيل او ور سره اتيا نارينه ٩ له بني يوآب عوبدياه
١٠ بن يحيئل او ور سره دوه سوه او اته لس نارينه ١٠ او له بني
١١ شلوميث ابن يوصفياه او ور سره يو سل او شپيته نارينه ١١ او
له بني بيابي نه زكريّا بن بياباي او ور سره اته ويشت نارينه
١٢ ١٢ او له بني عزجد يوحانان بن هقاطان او ور سره يو سل او لس

۱۳ نارينه ۱۳ او له بني ادونيكام وروستني وال او دهغو دا نومونه
دي اليفاط او يعئيل او شمعياه او دوي سره شپيته نارينه
۱۴ ۱۴ او له بني بغواي عوتاي او زبود او ورسره اويا نارينه *
۱۵ ۱۵ او ما دوي دهغه رود په لوري چه اهاوا ته بهيږي جمع كړل
او هلته دري ورځي ډيره شولو او ما په امّت او په كوهينان بينا
۱۶ شولم ليكن د لاوي له زامنو م هلته ونه موند ۱۶ نو ما سړي
واستاوه د اليعزر او د اريئيل او د شمعياه او د الناتان او د
ياريب او د الناتان او د ناتان او د زكرياه او د مشلام د پاره
چه سرداران وو او د يواريب او د الناتان د پاره چه فهمناك
۱۷ وو او رام و بلل ۱۷ او دوي م په اِدّو باندِ چه په هغه ځاي
كاسفيا سردار وه فرمان وكړ او د دوي په خولو كښ م
هغي خبري كيښودلي چه اِدّو ته او د ده ورونړو هغه نتنيم
ته په هغه مكان كاسفيا كښ خبره پرِ وكړي چه د الله ځمونږ
۱۸ د بيت د پاره مونږ لره خدمتكاران مونږ لره راولي ۱۸ نو دوي
مونږ ته موافق د لاس د الله ځمونږ چه په مونږ باندِ ښه
وه يو هوشمند سړي راوست له بني محلي بن لاوي بن
اسرائيل: او شربياه او د ده زامن او د ده ورونړه اته لس
۱۹ ۱۹ او حشبياه او ورسره يشعياه له بني مراري نه او د دوي
۲۰ ورونړه او د دوي زامن شل ۲۰ او له نتنيم نه هغوي چه
داود او د ده سردارانو د لاويانو د خدمت د پاره مقرر
كړي وو له نتنيم دوه سوه او شل دغه ټول په خپلو
۲۱ خپلو نومونو سره لقب شوي وو ۲۱ او ما هلته په رود باندِ
داهاوه د روژي لرلو منادي وكړه چه مونږ د خپل الله
د وړاندي خپلو ځانونو اندوه ګين وكړو چه له ده نه يوه
راسته لار ځانونو لره او ځمونږ تيي كيو او ځمونږ ټول مال

۲۲ موسِي لره ولېږو ۲۲ څکه چه زه وشرمېدلم چه له بادشاه
نه مې لښکر او سواره غوښتلي وَي چه په لارې کښې څمونږ
له دښمنانو نه مددکاري وکړي څکه چه مونږ بادشاه ته
خبره وکړه ويل به مو چه څمونږ د الله لاس په هغوتولو
د ښېگړي دپاره دي چه. د ده طالبان دي چه د دوي
خيروي او د ده توان او د ده غضب په هغوتولو دي چه
۲۳ دي ترک کړي ۲۳ نو مونږ روژه ولرله او په دغه باندِ مو
۲۴ له خپل الله لمانځه او ده قبول کړو ۲۴ او ما له سردارانو
کوهينانو دولس بېل کړل شريبياه او حشبياه او له دوي
۲۵ سره د دوي له ورونړو لس ۲۵ او دوي ته مې هغه سپين
او هغه سره زر او لوښي چه څمونږ د الله بيت پېښکښي
وو وجوکل چه بادشاه او د ده صلح کارانو او د ده سردارانو
او ټول اسرائيل چه موجود وو پېښکښې پورته کړي وو
۲۶ ۲۶ او ما شپږ سوه او پنځوس قنطارَ سپين زر او سل
قنطارَ د سپينو کليو او سل قنطارَ د سرو زرو د دوي
۲۷ لاس ته ورجوکل ۲۷ او شل کټورې د سرو زرو يو زر
دراهمَ او دوه کالي د صَيقل کړي شوي کره زيړو قيمت بها
۲۸ لکه سره زره ۲۸ او ما دوي ته وويل چه تاسي د يهوه
مقدّس يئ او کالي هم مقدّس دي او سپين او سره زر
۲۹ يهوه ستاسي د پلرونو الله لره نفلي هديه دي ۲۹ نو بيدار اوسئ
او ساتنه يې کوئ څو چه تاسي د سردارانو کوهينانو او د لاويانو
او د اسرائيل د پلارنيو سردارانو د وړاندي د بيت يهوه په
۳۰ خونو کښې وجوکئ ۳۰ او هغه کوهينانو او هغه لاويانو وزن
د هغو سپينو او د هغو سرو زرو او د هغو کليو قبول کړل چه
اورشليم ته ئې بيتِ الله څمونږ ته يوسي ؀

٣١ نو مونږ د اولي مياشتي په دوولسم تاريخ له اهوا رود نه ٣١
کوچ وکړ چه اورشليم ته ورشو او ځمونږ د الله لاس په مونږ
باندي وه او مونږ ئي د دښمن او د لاري د پټوني کونکو له ورغوي
نه خلاص کړلو ٣٢ او مونږ اورشليم ته راغلو او هلته دري ورځي ٣٢
مقيم وو ٣٣ او مونږ څلورمي ورځي هغه سپين او هغه سره زر ٣٣
او هغه کالي لوښي ځمونږ د الله په بيت کښې د مريموث زوي
د اورياه کوهين په لاس جوکل او ورسره العازار بن
پنيحاس او ورسره يوزاباد بن يشوع او نوعدياه بن بنوي
چه لاويان وو ٣٤ په شمار سره او تول له وزن او په دغه وقت ٣٤
کښې ټول وزن وليکلي شول ٣٥ او د جلا وطني زامن چه له ٣٥
بنديواني نه راغلل د اسرائيل الله ته ئي د سيزلو قرباني وگذارلي
په ټول اسرائيل باندي دوولس غوايان او د خطا د قرباني
د پاره شپږ نوي مړونه او اوه اويا وريئي او دوولس وزونه
هغه د خطا د قرباني وه دا ټول د خداوند د سيزلو قرباني وي
٣٦ او د بادشاه داد : د بادشاه کښت دار فريزو ته او ٣٦
د رود د پوري غاړي پيشواهانو ته ورکړل او هغو هغه امت
او بيت الله ته مدد ورکړ ۞

# نهم باب

١ او چه دا ټول پوره شول نو سرداران ما ته رانژدي شول ١
وئي ويل چه د اسرائيل قوم او کوهينان او لاويان د د زمکي
د قومونو له مينځه خپل ځانونه بيل کړي نه دي د دوي د
پليتيو به موافق د کنعانيانو او د حتيانو او د فرزيانو او د
يبوسيانو او د عمونيانو او د موابيانو او د مصريانو او د اموريانو
٢ ځکه چه دوي د هغو له لونړو د خپلو ځانونو د پاره او د خپلو ٢

زامنو د پاره نیولي دي او پاک تخم ئې د زمکي له قومونو سره
گډ کړي دي او سردارانو او د حاکمانو لاس په دې خیانت
۳ کښې اوّل شوي دي ۳ او چه ما دا خبره واوریده نو خپلي جامې
او خپل چادر مې څیري کړ او د خپل سر او بږیري ویښته مې ویستل
۴ او حیران کښیناستم ۴ نو هغوي ټول چه د اسرائیل د الله
له کلام نه لړزیدل د هغه جلاوطني په هغه خیانت باندې
ما ته را ټول شول او زه نماښام تر هدیې پوري حیران ناست
۵ وم ۵ او د نماښام د هدیې په وقت له خپل اندوه کولو پورته
شوم او څما په جامو او په څادر کښې چه څیري کړي شوي وې
په زنګونو مې رکوع وکړه او یهوه الله خپل ته مې ورغوي وغوړولي
۶ ۶ او وې ویل اې څما الله زه خو شرمیږم او ستا په لوري
دمخ په پورته کولو خجل کیږم اې څما الله ځکه چه ګناهونه
څمونږ پاس په سرونو څمونږ ډیر شول او څمونږ ګرموالئ
۷ آسمان ته لوئې شولي ۷ څمونږ د پلرونو له ورځو ترنن ورځې
پوري په لوئې ګرموالئ یو او څمونږ د ګناهونو په سبب مونږ
او څمونږ بادشاهان او څمونږ کوهینان د زمکو د بادشاهانو
په لاس په توري او په بندیواني او په لوټ او په زردروئې
۸ ورکړي شولو لکه نن ورځ ۸ او اوس له لږ لحظې نه د
خداوند څمونږ د الله له نزد نه فضل وه چه مونږ لره یوه
خلاصي باقي پرېږدي او په خپل مقدس مکان کښې یو
میخ راکړي تا چه څمونږ الله څمونږ سترګې روښانه کړي
او څمونږ په غلامي کښې مونږ ته لږ څه د ژوندون ساتنه راکړي
۹ ۹ ځکه چه مونږ غلامان وو مګر څمونږ الله مونږ څمونږ
په غلامي کښې نه پرېښودلو بلکه په مونږ باندې د فارس
د بادشاهانو د وړاندې مهرباني اوږداوه تا چه مونږ ته د

ژوندون ساتنه راکړي چه مونږ د خپل الله بیت اوچت
کړو او خرابي ئې ودروو او چه دي مونږ ته په یهوداه او
۱۰ په اورشلیم کښې جدران راکړي ۱۰ او اوس مونږ پس
له دي نه څه ووایو اي څمونږ الله ځکه چه مونږ ستا
۱۱ فرصونه ترک کړي دي ۱۱ هغه چه تا د خپلو بندګانو نبیانو
په لاس فرض وفرمایل و دِ ویل چه هغه زمکه چه تاسي
ورځئ چه په میراث ئې واخلئ هغه نجسه زمکه ده
د هغو زمکو د قومونو په نجاست او پلیتي چه دوي
۱۲ په خپلو ګندګي ډکه کړي ده ۱۲ او اوس تاسي خپلي
لوڼړي د دوي زامنو ته مه ورکوئ او د دوي لوڼړي
خپلو زامنو ته مه نیسئ او د دوي سلامتي او د دوي
ښیګړه تر ابده مه غواړئ تا چه تاسي مضبوط شئ او د
زمکي ښیګړه و خورئ او خپل زامنو ته تر ابده پوري
۱۳ وارثان کړئ ۱۳ او پس له هغو ټولو چه په مونږ باندي
څمونږ د بدو عملونو او لویو ګناهونو په سبب راغلل تا موږ
اي څمونږ الله له خپلو ګناهونو تر لاندي پلولي یو او موږ
۱۴ ته دِ نجات راکړ لکه دغه ۱۴ نو مونږ دِ بیا وګرزو او ستا
فرصونه مات فرارکوو څه؟ او د دي مکرو حاتو په قومونو
سره خوشي وکړو څه؟ نو ته به په مونږ باندي خپه
نه شي څو چه مونږ فنا کړي نو نه به باقیه پاتي شي نه
۱۵ نجات ۱۵ اي یهوه الله د اسرائیل ته صادق یي چه مونږ
لکه نن ورځ باقي پاتي یو خلاصي ګوره مونږ ستا د وړاندِ
په خپلو ګناهونو کښې یو ځکه چه مونږ ستا د وړاندي
د دغه په سبب دریدلي نه یو ٭

# لسم باب

١ آ او چه عزرا دعا وکړه او خواله ئې ویله او وئې ژړل او
د بیت الله د وړاندې پرېوت نو به ته له اسرائیل
نه یو ډېر لوی ټولی ورجمع شه اِنسان او انسانیانې او کړانې
٢ څکه چه امّت به لوی ژړا سره وژړل ٢ او شکنیا بن یحئیل
له بنی عیلام نه څواب ورکړ عزرا ته ئې وویل چه مونږ
د خپل الله په خلاف خیانت کړې دی او بېګانه ښځې مو
د زمکې له قومونو واخستلې دی لیکن اوس هم اسرائیل
٣ لره به دې باندې اُمید شته دی ٣ نو اوس دې مونږ له خپل
الله سره وعده وکړو چه ټولې ښځې او هغه چه له دوی
زېږېدلې دی د خپل خاوند د مصلحت په موافق او د هغو
چه څمونږ د الله په فرمان لړزېږی خارجې کړو او به
٤ موافق د توریت دې عمل وکړې شي ٤ پورته شه څکه
چه دا خبره په تا باندې ده او مونږ له تا سره یو تکړه شه
٥ او به عمل ئې راوړه ٥ او عزرا پورته شه او سردار کوهینانو
اولاویانو او ټول اسرائیل لره قسم وخوراوه چه دوی به
٦ د دې خبرې په موافق وکړې نو دوی قسم وخوړ ٦ او عزرا
د بیت الله د وړاندې پورته شه او د یهوحانان بن
الیاشیب وخونې ته لاړ شه او چه هلته ورغې نو نه
ئې ډوډۍ خوړه او نه ئې اوبه څښلې څکه چه ده د
٧ جلاوطنې په خیانت باندې ویر کاوه ٧ او بیا دوی د
یهوداه او د اورشلیم په مینځ کښې ټولو زامنو د جلاوطنې
٨ ته جار تیراوه چه اورشلیم ته دې را ټول شي ٨ او هر یو
چه د سردارانو او د سپینږیرو د مصلحت په موافق به
درو ورځو کښې رانه شي د هغه ټول مال مویشې به حرام

کړي شي او ده د جلاوطنۍ له جمعت نه به بيلولی شي
۹ نو ټول کسان د يهوداه او بنياسن اورشليم ته په درو ۹
ورځو کښې راجمع شول يعني د نهمي مياشتي په شلم
تاريخ او ټول امت د بيت الله په رحب کښې کښيناست
په دغي خبري لړزيدونکي او له شيبې بارانونو په سبب ۱۰ نو ۱۰
عزرا هغه کوهين پورته شه او دوي ته ئې وويل چه تاسي
خيانت کړي دي او بيګانه ښځي مو بنديان کړي دي چه د
اسرائيل ګناه زياته شي ۱۱ نو تاسي اوس يهوه ستاسي ۱۱
د پلرونو د الله د وړاندي اقرار وکړئ او د ده رضا په عمل
راوړئ او د زمکي له قومونو ګوښي شئ او له پرديو ښځو نه
۱۲ نو ټول جماعت ځواب ورکړ او په لوي آوازئ وويل چه ۱۲
لکه تا خبره په مونږ باندِ وکړه هم هسي به مونږ وکړو
۱۳ ليکن اَمّت ډيردي او دا د شيبي بارونه وقت دي او ۱۳
مونږ د باندي دريدلو طاقت نه لرو او دا کار هم نه ديوي
او نه د دوو ورځي دئ ځکه چه مونږ په دی کار کښې ډير
فسق کړي دي ۱۴ نو اوس ځمونږ سرداران د ټول جماعت ۱۴
د پاره دِ ودريږي او هغه ټول چه ځمونږ په ښهرونو کښې
پردي ښځي اوسولي دي په لايق زمانو کښې دِ راشي او له دغو
سره دِ د هريوه ښهر سپين ږيري او قاضيان ئې تر دي حده
چه را نه ځمونږ د الله د غضب ګرمي د دي خبري په
سبب را نه وګرزي ۱۵ ته‌ش يوناتان بن عسائيل او يحزياه ۱۵
بن تقوه په دي کار ودريدل او مشلام او شبتي هغه
لاوي د دوي مددګاري کوله ۱۶ او د جلاوطني زاسنو هم ۱۶
دا هسي وکړل او عزرا هغه کوهين او پلري سرداران
کسان موافق د کورونو د پلرونو د دوي او هغه ټول نوم

په نوم ګوښي کړي شول او د لسمي مياشتي په اوّل تاريخ د
١٧ دي خبري د تفحص د پاره کښيناستل ١٧ او په اوّلي ورځي
د اول مياشتي د هغو ټولو کسانو چه پردئ ښځي ئې اوسولي
١٨ وي تمامولي ئې ١٨ او د کوهينانو د زامنو په مينځ کښې وموندلي
شول چه پردئ ښځي ئې اوسولي وي له بني يشوع نه بن
يوصاداق او د ده ورونړه معسياه او اليعزر او ياريب او
١٩ جدلياه ١٩ او دوي هغو ته د خپلو ښځو په خارجولو لاسونه
ورکړل او د خپلو ګناهونو د پاره له رمي نه ديوه مړه په
٢٠ خپلو ګناهونو باندِ ٢٠ او له بني امير حناني او زبدياه
٢١ ٢١ او له بني حاريم معسياه او ايلياه او شمعياه او يحيئيل
٢٢ او عزّياه ٢٢ او له بني پشحور اليوعني او معسياه او
٢٣ اسماعيل او نتنئيل او يوزاباد او العاسه ٢٣ او له لاويانو
يوزاباد او شمعي او قلايا (هغه قليطا) او پتحياه او يهوداه او
٢٤ اليعزر ٢٤ او له هغو سرودګرانو الياشيب او دروانانو
٢٥ شلوم او طلم او اوري ٢٥ او له اسرائيله له بني پروش
رمياه او يزّيا او ملکياه او ميّامين او العازار او ملکياه
٢٦ او بناياه ٢٦ او له بني عيلام متنياه او زکرّياه او يحيئيل
٢٧ او عبدي او يريموث او ايلياه ٢٧ او له بني زتّوته اليوعيناي
٢٨ او الياشيب او متنياه او يريموث او زاباد او عزيزا ٢٨ او له
٢٩ بني بيباي يهوحانان او حننياه او زبّي او عتلي ٢٩ او
له بني باني نه مشلام او ملوک او عداياه او ياشوب
٣٠ او شئال او راموث ٣٠ او له بني پحث موآب عدني او
کلال او بناياه او معسياه او متنياه او بصلئيل او بنّوي
٣١ او منسي ٣١ او بني حاريم اليعزر او يشياه او ملکياه او شمعياه
٣٢ ٣٣ او شمعون ٣٢ او بنيامين او ملوک او شمرياه ٣٣ له بني

حشوم متناي او متاتاه او زاباد او اليفلط او يريماي او منسّي
۳۴ ۳۵ او شمعي ۳۴ له بني باني نه معدي او عمرام او اوئيل ۳۵ بناياه
۳۶ ۳۷ او بيدياه او کلوهي ۳۶ او ونياه او مريموث او الياشيب ۳۷ او
۳۸ ۳۹ متنيا او متني او يعسو ۳۸ او باني او بنوي او شمعي ۳۹ او
۴۰ شلمياه او ناتان او عداياه ۴۰ او مکندبي او شاشاي او
۴۱ ۴۲ شاراي ۴۱ عزرئيل او شلمياهو او شمرياه ۴۲ او شلوم او
۴۳ امرياه او يوسف ۴۳ له بني نبو نه يعئيل او متثيا او زاباد
۴۴ او زبينا او يدّو او يوئيل او بناياه ۴۴ دغو ټولو پردۍ ښځي
اخستلي وي او ورنه ځيني وو چه ښځي او زامن ئې لرلي ۞

تمام شه

# نحمیاه

## اوّل باب

۱ ۱ کلام د نحمیاه زوي د حکلیاه او د کسلو په میاشت په
شلم کال کښې داسي وشول چه زه په شوشن هغه بارو
۲ کښې وم ۲ او حنانی چه یو ځما له ورونړو ؛ هغه او ځو کسان
نور له یهوداه راغلل او ما ورنه د هغو یهودیانو په باب
چه له بندیوانی باقیه بچ شوي وو او د اورشلیم په باب
۳ پوښتنه وکړه ۳ او دوي راته ووي چه هغه باقیاه چه له
بندیوانی نه را باقي شوي دي هلته په صوبې کښې په لوي
افت او په ملامت کښې دي او د اورشلیم دیوال نړیدلي
۴ او دروازي ئې په اور بلیدلي شوي دي ۴ او چه ما دغي
خبري واوریدلي کښیناستم او وم ژړل او څو ورځي م وير
کاوه او روژه م لرله او د آسمان د الله د وړاندي م دعا کوله
۵ ۵ او وم ویل چه اي یهوه . الله د آسمانونو لوي او ویره ناک
ساتونکي د وعدي او د مهرباني هغو لره چه په ده مینه
۶ کوي او د ده فرضونه ساتي ۶ ستا غوږونه د اوس نغوتلي
وي او ستا سترګي پرانتلي تا چه ته د خپل بنده دعا واوري
چه زه اوس تا ته ورځ او شپه دعا کوم په بني اسرائیل
باندي بندګان ستا او د بني اسرائیل په خطاؤ باندي چه
مونږ ستا په خلاف خطا کړي ده اقرار کوم چه ما او ځما
۷ پلارني کور خطا کړي ده ۷ مونږ تا لره په حبطي کړیدلي يو
او هغه فرضونه او حکمونه او عدالتونه چه تا موسیٰ بنده

خپل ته وفرمایل و سو نه ساتل ۸ هغه کلام په یاد کړه که نه ۸
چه موسیٰ بنده خپل ته دِ وفرمایه و دي ویل چه که تاسي
خیانت وکړي نو زه به تاسو په قوسونو کښې تار په تار
کړم ۹ اوکه تاسي ماته را وګرزئ او ځما فرضونه و ساتئ ۹
او عمل پر وکړي نو که چري ستاسي شړلي شوي د آسمانونو
په انتها کښې شوي وي : له هغه ځاي به ئې په راټولولو
را وستم او دوی به هغه مکان ته راولم چه ما غوره کړي دي
چه په هغه کښې خپل نوم ساکن کړم ۱۰ او دوی ستا بندګان ۱۰
او ستا امّت دي هغه چه په خپل لوي قدرت او قوتناک
لاس دِ فدا کړي دي ۱۱ ایَ خداونده زاري کړم که نه ستا ۱۱
غوږونه دِ د خپل بنده دعا ته او ستا د هغو بندګانو دعا ته
چه ستا له نوم نه د ویریدلو اراده لري نغوتلي دِ وي که نه
او ته نن خپل بنده کامیاب کړه او د دي سړي د وړاندي
رحمتونه ور عنایت کړه که نه (ځکه چه زه د بادشاه ساقي وم)

# دوهم باب

۱ ۱ او د نیسان په میاشت کښې په شلم کال د ارتحششتا
بادشاه : د ده د وړاندي شراب وه او ما هغه شراب واخستل
او بادشاه ته مې ورکړل او زه به د ده د وړاندي خپه شوي
۲ نه وم ۲ او بادشاه راته وویل چه ولي ستا مخ خپه دي
او ته رنځور هم نه یې ؟ دا نور څه نه دي مګر د زړه خپګي
۳ نو زه ډیر و ویریدم ۳ او بادشاه ته مې وویل چه بادشاه
دِ تر ابده پوري ژوندي وي ولي ځما مخ به خپه نه وي
چه هغه ښهر چه ځمونږ د پلرونو قبراستان کور خراب
۴ پروت دي او دروازي ئې اور خوړلي دي ۴ او بادشاه

را ته ووي چه ته به څه باندي لټونکي يې نو ما د آسمانونو
۵ الله ته دعا وکړه ۵ او بادشاه ته مې ووييل چه که د بادشاه خوښه
وي او ستا بنده ستا د وړاندي خير خيريت وي نو دغه چه
يهوداه ته مې واستوه څمونږ د پلرونو د قبرونو ښهر ته چه زه
۶ ئې بنا کړم ۶ او بادشاه (او هغه بيګمه ده به څنګ کښي ناسته
وه) را ته وويل چه ستا سفر به ترڅو پوري وي او کله به
راستون شي؟ نو بادشاه د وړاندي ښه ښکاره شه چه
۷ ما واستوي او ما ده ته يوه زمانه کينبوده ۷ او ما بادشاه
ته وويل چه که به بادشاه ښه ښکاريږي نو د نهر د پوري خواه
پيشواهانو ته دِ اګاه پرواني را کړي شي چه دوي مې يهوديه
۸ ته تيروي ۸ او يوه اګاه پروانه آسف ته چه د بادشاه د فردوس
ساتونکي دئ چه هغه ما ته لرګي را کړي د لګړه پيونديدلو
د پاره د هغې دروازي د بارو چه به بيت لره دي او د ښهر د
ديوال د پاره او د هغه کور د پاره چه زه ورشم: او لکه چه لاس
۹ د ښيګړي د الله به ما باندي وه بادشاه ما ته را کړل ۹ نو
زه د پوري غاړي پيشواهانو ته ورغلم او د بادشاه اګاه پرواني
مې ورکړي او بادشاه له ما سره د لښکر سرداران او سواره
۱۰ واستول ۱۰ او چه سنبلط حوروني او طوبياه عموني غلام
واوريدل نو لوي بدي ورته بد کاوه چه يو سړي راغلي دي
۱۱ چه د بني اسرائيل خير غواړي ۱۱ او زه اورشليم ته راغلم
۱۲ او هلته دري ورځي وم ۱۲ او زه د شپي پورته شوم زه او بل
څه کسان را سره وو او هغه څه چه څما الله څما به زړه کينبول
چه زه به په اورشليم څه کوم هيڅ يو آدمزاد ته مې پري څرګند
نه کړ او له ما سره هيڅ چارپاي نه وه مګر هغه چارپاي چه
۱۳ زه پري سوار وم ۱۳ او زه د شپي د خوړي به دروازي

ووتم د عینِ تنین د دروازي او د ډیران تر دروازي پوري
او د اورشلیم دیوالونه چه نړیدلي وو او د هغه دروازي چه
۱۴ اورخوړلي وي خیري مِ کړلې ۱۴ او زه د چیني دروازي ته تیر
شولم او د بادشاه تالاؤ ته او د هغه چارپاي د تیریدلو ځاي
۱۵ نه وه چه تر ما لاندي وه ۱۵ نو زه د شپي په خوړي کښ
وختلم او د دیوال مِ خیر کاوه بیا وګرزیدم او د خوړي له
۱۶ دروازي ننوتلم جاروتلم ۱۶ او هغو حاکمانو ته معلوم نه شو
چه زه چرته تلم او چه ما څه کول او ما تر دغه وقت پوري
یهودیانو ته او کوهینانو ته او امرایانو ته او حاکمانو ته او
۱۷ نورو کارکونکیو ته نه څرګند اوه ۱۷ او ما دوي ته وویل چه تاسي
دغه آفت وینئ چه مونږ په کښ یو چه اورشلیم خراب
شوي دیٔ او دروازي ئې په اور سوزولي شوي دي راشئ چه
د اورشلیم دیوال بنا کړو چه بیس له دغه ملامتیا نه شو
۱۸ ۱۸ او دوي مِ خدا د الله د لاس چه په ما باندي ښه وه
څرګند اوه او هم د بادشاه د خبره چه ما ته ئې وویله . نو دوي
وویل چه پورته شو چه بنا کړو او دوي د دي ښه کار د پاره
۱۹ خپل لاسونه مضبوط کړل ۱۹ او چه سنبلط هغه حوروني او
طوبیاه هغه عموني مريي او جشم عربي واوریدل نو په ما
پوري ئې توقي وکړي او په مونږ باندي سپکي وهلي او وئې ویل
چه دا څه کار دیٔ چه تاسي ئې کوئ تاسي په بادشاه باندِ
۲۰ یاغي کیږئ څه؟ ۲۰ نو ما دوي ته خبره وګرزاوه او ورته مِ
وویل چه د آسمان الله به مونږ ته کامیابي راکړي او مونږ
د ده غلامان پورته به کیږو او بنا به وکړو لیکن تاسو له
نه ویش نه حق او نه یادګاري شته په اورشلیم کښ *

# دریم باب

۱ آ نو الیاشیب هغه لوی کوهین او د ده کوهینان ورونړه
پورته شول او د ګډانو دروازه ئې بنا کړه او مقدسه ئې کړه
او د هغه تنبې ئې ودرولې او د میه تر برج د حننئیل
۲ تر برج پورې ئې مقدسې کړې ۲ او د هغه په څنګ کښې د
اریحا کسان بنا کاوه او د دوی په څنګ کښې ذکور بن امري
۳ بنا کاوه ۳ او د ماهي دروازې بني هسناه بنا کاوه او دوی
بینشونه پیوندول او تنبې ئې او د هغه جندرې ئې او ارمونه
۴ ئې ودرولې ۴ او د دوی په څنګ کښې مریموث بن اوریاه
بن هقوص مرمت کاوه او د دوی په څنګ کښې مشلام بن
برکیاه بن مشیزبئیل مرمت کاوه او د دوی په څنګ کښې
۵ صادوق بن بعنا مرمت کاوه ۵ او د هغو په څنګ کښې هغو
تقوعیانو مرمت کاوه مګر د دوی اشرافانو د خپل خاوند په
۶ عبادت کښې خپلې غاړې داخلې نه کړې ۶ او زړه دروازه
یویاداع بن پاسیح او مشلام بن بسودیاه جوړه کړله او دوی
بینشونه پیوندول او د هغه تنبې او جندرې او ارمونه ئې
۷ ولګول ۷ او د دوی په څنګ کښې ملطیاه هغه جبعوني او
یادون هغه میرونوتي د جبعون او د مصپات کسانو تر کرسي
۸ د پیښوا او د نهر تر پورې غاړې مرمت کاوه ۸ او د دوی په
څنګ کښې عزیئیل بن حرهایاه چه له زرګرانو وه مرمت
کاوه او د دغې په څنګ کښې حننیاه چه له عطارانو وه
مرمت کاوه او دوی اورشلیم تر پلن دیوال پورې پرې ښودلي
۹ وه ۹ او د دوی په څنګ کښې رفایاه بن حور سردار د نیمې
۱۰ دائرې د اورشلیم مرمت کاوه ۱۰ او د دوی په څنګ کښې

یدایاه بن حورمف دده دکورتر برابری پوري مرمت کاوه
او دده په څنګ کښې حطّوش بن حشبنیاه مرمت کاوه
۱۱ دویم ویش او دتنورونو برج ملکیاه بن حاریم او حشوب ۱۱
بن پحت مواب مرمت کاوه ۱۲ او د هغه په څنګ کښې ۱۲
شلوم بن هلوحیش چه سردار د نیمې دائرې د اورشلیم
ده او د ده لونړو مرمت کاوه ۱۳ د خوري دروازه حانون ۱۳
او د زانوح اوسیدونکو مرمت کاوه دوي بنا کاوه او
د هغې تنبې او جندرې او اړمونه ئې ودرول او د ډیران
تر دروازې پوري یو زر هاتې په دیوال باندې ۱۴ او د ډیران ۱۴
دروازه ملکیاه بن رکاب چه د بیت هکاریم د دائرې
سردار مرمت کاوه هغه ئې بنا کړه او د هغې تنبې او
جندرې او اړمونه ئې ودرول ۱۵ او د چینې دروازه شلون ۱۵
بن کالحوزه سردار د دائرې د مصفاه مرمت کاوه هغه
ئې بنا کړه او چت ئې کړه او د هغې تنبې او جندرې او
اړمونه ئې ودرول او دیوال د تالاؤ د سلوح د بادشاه د
باغ څخه تر هغې زینې پوري چه د داؤد له ښهر کوزیږي
۱۶ او پس له دغه نحمیاه بني عزبوق سردار د نیمې ۱۶
دائرې د بیت صور د داؤد د قبرونو تر برابره پوري او تر
جوړکړي شوي تالاؤ پوري او تر بیت جبّاریم پوري مرمت
کاوه ۱۷ او پس له هغه لاویانو رحوم بن باني مرمت ۱۷
کاوه او د هغه په څنګ کښې حشبیاه سردار د نیمې
دائرې د قعیله په خپلې دائرې کښې مرمت کاوه ۱۸ او ۱۸
پس له دغه د ده ورونړو بوّاي بن حیناداد سردار د نیمې
دائرې د قعیله مرمت کاوه ۱۹ او د هغه په څنګ کښې عیزر ۱۹
بن یشوع سردار د مصفاه د دویم ویش د وسلې خانې د ختنې

په

۲۰ په برابر د کوټي مرمت کاوه ۲۰ او پس له هغې باروخ بن
زبای د دویم ویش له کوټي نه د الیشیب هغه لوي کوهین
۲۱ د کوټ تر مدخل پوري په سعیه د حبّاري سره مرمت کاوه ۲۱ او
پس له هغه نه مریموت بن اوریاه بن هقوڅ دویم ویش د
الیشیب د کور له مدخل نه د الیشیب د کور تر ختمه پوري
۲۲ مرمت کاوه ۲۲ او پس له دغه هغه کوهینانو چه د میدان
۲۳ کسانو وو مرمت کاوه ۲۳ او پس له دوي بنیامین او حشوب
د دوي د کور په برابر مرمت کاوه او پس له دوي عزریاه
بن معسیاه بن عننیاه د خپل کور په څنګ کښی مرمت
۲۴ کاوه ۲۴ او پس له دغه بنوي بن حیناداد دویم ویش له
کور د عزریاه نه تر کوټي او د دیوال تر کوټي برج پوري
۲۵ پالال بن اوزاي د کوټي او د هغه برج له برابره چه د بادشاه
له بالاخانی راوتلي دي هغه چه د قید خانی له غولي سره نګیدي
۲۶ دي او پس له دغه یدایاه زوي د پرعوش مرمت کاوه ۲۶ (او
هغه نتنیم چه په عوفل کښی او سیدونکي وو د مشرق په لوري
د اوبو د دروازي تر برابره پوري او تر هغه برج پوري چه د باندي
۲۷ ووزي) ۲۷ او پس له دوي هغه تقوعیانو دویم ویش د بهر
وتونکي لوي برج له برابره د هغه عوفل تر دیوال پوري مرمت
۲۸ کاوه ۲۸ او د آسونو له دروازي له پاسه هغه کوهینانو مرمت
۲۹ کاوه هر یوه د خپل کور په برابر ۲۹ او پس له دوي صادوق زوي
د امّیر د خپل کور په برابر مرمت کاوه او پس له دغه شمعیاه
۳۰ بن شکنیاه نګهبان د مشرقي دروازي مرمت کاوه ۳۰ او پس
له دغه حننیاه بن شلمیاه او حانون د ځالاف هغه شپږم
زوي دویم ویش مرمت کاوه او پس له دغه مشلّام بن برکیاه
۳۱ د خپلي خوني په برابر مرمت کاوه ۳۱ او پس له دغه ملکیاه زوي

د

د زرګر د نشنیم او د سوداګرانو ترکوره پوري د همفقاد د
دروازي تر برابر پوري دګرزیدني تر ختني پوري مرمت کاوه
۳۲ او دګرزیدني د ختني له مینځ د وزو تر دروازي پوري ۳۲
زرګرانو او سوداګرانو مرمت کاوه *

# څلورم باب

آ او داسي وشوه چه سنبلط واوریدل چه مونږ د دیوال ۱
بنا کونکي یو نو ورته سخته راغي او ډیر په غصه شه او په
یهودیانو پوري ئي توقي کولي ۲ او د خپلو ورونړو او د سامریانو ۲
د لښکر د وړاندي خبري کولي ویل ئي چه دا سرتیټوال یهودیان
څه کوي دوي ته اجازت شه څه؟ دوي به ذبیحي وکړي څه؟
دوي به یوي ورځي پوره کوي څه؟ دوي به د وری له
تودي نه کاڼي ژوندي کړي څه؟ او هغه هم سوي دي
۳ او توبیاه هغه عموني د ده په څنګ کښ وه او وئي ۳
ویل چه دوي ئي بنا کونکي دي چه که یو شغال وربانډي
وخیژي نو د دوي د دیوال کاڼي ونړیږي ۴ واوره ای ۴
څموږ الله ځکه چه مونږ بوزیان کنړلي شوي یو
او د دوي ملامتیا د دوي په سرونو ور وګرزوه او د
بندیواني په زمکي کښ ئي لوټ ته ورکړه ۵ او ته د ۵
دوي ګناه مه پټوه او ستاد وړاندي د دوي خطاوي
مه محوي کوه ځکه چه دوي د بنا کونکو د وړاندي ته
په غضب کړي یي ۶ نو مونږ دیوال بنا کړ او ټول دیوال تر ۶
نیمي پوري سره بندونه پیوست وه ځکه چه امت
لره د عمل کولو زړه وه *
۷ او چه سنبلط او طوبیاه او هغو عربو او هغو عمونیانو ۷

اوهغه اشدودیانو واوریدل چه د اورشلیم د دیوالونو
مرمت خیږي اوکنډ وان ئې په سترکیدلو شول نو ور
٨ لړه ډیره سیخته شوه ٨ اوټولو لکه یو سره سازش کاوه
چه ور شو او له اورشلیم سره و جنګیږي او نقصان.
٩ ور و رسوي ٩ نو مونږ خپل الله ته دعا وکړه او په دوي
باندي ورځ او شپه نګهبان مومقرر کړل د هغوی په سبب
١٠ ١٠ اویهوداه وویل چه د باربردارو قوّت ضعیف شه او
خاوري ډیري دي او مونږ نه توانیږو چه دیوال بنا کړو
١١ ١١ او ځمونږ ضرررسان وایي چه ترڅو پوري چه مونږ د
دوي و مینځ ته ورګډ نه شو او قتل ئې نه کړو او کار به
١٢ سبب نه راوړو نو نه به پوهیږي او نه به ویني ١٢ او
چه هغه یهودیان چه د دوي په څنګ کښې اوسیدل
راغلل نو لس واره ئې له هغو ټولو ځایونو نه راته وویل
١٣ چه تاسي به مونږ ته را جاروزئ ١٣ نوما امّت د دیوال د
ورستو د لاندي په ځایونو کښې ودراوه او دوی هم په صحیح
ځایونو موافق د خپلخانود دوي له تورو سره او د دوی له
١٤ برچو او د دوي له لیندو سره و دروله ١٤ او ما وکتل او
پورته شوم او میرانو او حاکمانو او باقي امّت ته هم وویل
چه تاسي د هغو له مخونو مه ویریږئ بلکه هغه خاوند چه
لوي د لویښت او هیبتناک دی په یاد کړئ او د خپلو ورونړو
او زامنو او لونړو او ښځو او کورونو خپلو د پاره و جنګیږئ
١٥ ١٥ او داسي وشوه هرکله چه ځمونږ دښمنانو واوریدل چه
مونږ خبر شولو او چه الله د دوي مصلحت باطل کړي وه
نو مونږ ټول دیوال ته و جاروتلو هر سړي خپل کار ته
١٦ ١٦ او له دغې ورځي داسي وشوه چه ځما نیم خوانان به په

کار کلیا وو او نیمو به برجي او ډالونه اولیندي او زغري
نیونکي وو او سرداران به د یهوداه د هرکور د ورستو
موجود وو ١٧ هغو بنا کونکو په دیوال او بار وړونکو چه ١٧
بارونه به ئې ییږدل د ده په یوه لاس به ئې کار کاوه او
په بل لاس به ئې وسله نیولې وه ١٨ او معمارانو به هر ١٨
سړي خپل توره د ده په ملا و پوري تړلي وه بنا کونکي
او تورنګ وهونکي څما په څنګ کښې وه ١٩ نو ما میرانو ١٩
او حاکمانو او نور امّت ته و ویل چه کار ډیر او ګشاده دئ
او مونږ په دیوال باندي پرت ورایه یو او هر سړي له خپل
وروڼ لري ٢٠ نو په هغه ځاي چه تاسي ورنه د قرنا آواز ٢٠
واورئ نو هلته مونږ لره راټولیږئ څمونږ الله به څمونږ
د پاره وجنګیږي ٢١ نو مونږ کار کاوه او نیمو د دوي به د ٢١
لوي سحر له ختلو نه د ستوریو تر وتلو کیدلو پوري برچي
نیونکي وو ٢٢ هم په دغه وقت ما امّت ته وویل چه هر ٢٢
سړئ د له خپل نوکر سره د اورشلیم په مینځ کښې شپه
تیروي چه دوي مونږ لره په شپه نګهبان وي او د ورځي
کار کوي ٢٣ نو نه به ما او څما ورونړو او څما نوکرانو او ٢٣
د نګهبانو کسانو چه څمونږ ورستوال وو جامي خپلي باسلي
هر سړي به له خپلي درستي سره اوبو ته ورته

## پنځم باب

١ او د امّت او د دوي ښځو په یهودیانو ورونړو د هغوي ١
لوي فریاد وشه ٢ ځني وو چه ویونکي شول چه څمونږ ٢
زامن او لوڼړي ډیر دي مونږ د غله واخلو چه وئ خورو
او ژوندي اوسو ٣ او ځني وو چه ویونکي شول چه مونږ ٣

خپل پټي او تاکستانونه او کورونه خپل موګرو کړي دي تاچه
۴ به لوږي کښې غله واخلو ۴ اوځني وو چه ويونکي شول چه
موږ به خپلو پټو او تاکستانو د بادشاه د خراج د پاره سپين
۵ زر به پور اخستلي دي ۵ او اوس ځموږ غوښې لکه ځموږ
د وروڼو غوښې او ځموږ زامن لکه د دوي زامن هسې دي
او ګوره چه موږ خپل زامن او خپلې لوڼي به غلامي کښې
ورکوو او ځموږ له لوڼو د ربلي شوي شته دي او ځموږ به
لاسونو کښې طاقت نشته او ځموږ پټي او تاکستانونه د نورو دي
۶ ۶ او ماچه د دوي فرياد او دغې خبرې واوريدې نو ما ته ډير
۷ سوز واغلل ۷ او ما له خپل زړه سره صلاح وکړه او ما له
امرايانو او له حاکمانو سره دعوي وکړه او ورته مې وويل
چه تاسي هر سړي له خپل ورور نه به پور سره سود
اخستونکي يئ او ما به دوي باندي يو لوي ټولي ودراوه
۸ ۸ او ورته مې وويل چه موږ خپل يهوديان ورونړه چه به
قومونو خرڅ شوي وو د خپل وس به موافق وپيرودل او تاسو
هم خپل ورونړه خرڅوئ او ځموږ ته د خرڅ کړي شي شه؟ او
۹ دوي چپ شول او هيڅ خبره ئې ونه مونده ۹ او ما وويل
چه دغه خبره ښه نه ده چه تاسي ئې کوئ او تاسي ځموږ د
الله به ويري نه ځئ څه؟ د هغو قومونو د پيغور په سبب
۱۰ چه ځموږ دښمنان دي ۱۰ او زه هم او ځما ورونړه او ځما
نوکران د سپين زر او غله هغوته به پور سره کيږدو او موږ
۱۱ د دا پور واي پريږدو که نه؟ ۱۱ هم نن ورځ د دوي پټي او
د دوي انګور ستانونه او د دوي زيتوني باغونه او د دوي
کورونه او سلمې حصه د روپۍ او د غلې او د شيرې او
د تيلو چه تاسي به هغو باندي پور کيږدئ بيرته ورکړئ

۱۲ ۱۲ او دوی وویل چه و به ئې ورکړو او هیڅ ورنه نه غواړو
لکه چه ته وائې داسې کوو او ما هغه کوهینان راوبلل او
هغوته مې قسم ورکړ چه دوی به د دوی خبرې په موافق
۱۳ کوې ۱۳ او بیا مې خپل لمن وڅنډله او ومې ویل چه هر هغه
سړی چه دا خبره قایمه نه کړې هم هسې دِ هغه لره الله له
خپل کور نه او له خپل مشقّت نه وڅنډې او هسې دِ
څنډلی شې او تش دِ وي او ټول جماعت وویل آمین
او د یهوه ثنا ئې وکړه او امّت د دې کلام په موافق عمل وکړ
۱۴ ۱۴ او بې له دې نه له هغې ورځې چه زه په ځمکه د یهوداه
په ځمکه کښې پیشوا مقرّر شوې وم له شلم کال نه تر
دو دیرشم کال د ارتخشستا بادشاه چه دوولس کاله
۱۵ دې : نه ما نه ځما وروڼو د حاکمې ډوډۍ خوړله ۱۵ ځکه
چه هغه حاکمان چه له مونږ نه وړاندې وو په امّت باندِ
ګران ګذرات وو او دوی ورنه ډوډۍ او شراب تر څلویښتو
شاقلو د سپینو زرو نوړهم اخستل د دوی نوکرانو هم په
امّت باندې سلطنت کاوه او ما خو داسې کار د الله د
۱۶ ویرې له حضور کاوه ۱۶ او د دغه دیوال په کار هم
ټینګ شوم او پټې مو نه پیرود او ځما ټول نوکران
۱۷ هلته په کار باندې جمع شوې وو ۱۷ او په دسترخوان
ځما به له یهودیانو او له حاکمانو یو سل پنځوس سړي
وو زیات له هغو چه مونږ لره به ځمونږ له شا او خوا
۱۸ اطرافو راتلل ۱۸ او هغه چه د یوې ورځې د پاره به تیار
کیدل یو غوئې او شپږ غوره ګډورې او مرغان به راته
طیار کیدل او بارې د لسو ورځو به مینځ د هر قسم شراب
په کثرت سره او سره د دې ما د پیشوا ډوډۍ طلب نه

کوله

١٥ کوله ختکه چه به دي اسّت مریبتوب گران بار وه ١٩ اې
خما اللّه ما په نیکۍ سره یاد کړ هرڅه چه ما د دوي اسّت
د پاره کړي دي ❊

# شپږم باب

١ ١ او چه سنبلط او طوبیاه او جشم هغه عربي او نورو
خمور دښمنانو ته واوریدلي شه چه ما دیوال بنا کړي
وه او په کښې هیڅ پریکون په کښې پاتي نه شه اگرکه م
تر هغه وقت پوري په دروازو کښې تنبي ودریدلي نه وې
٢ ٢ نو سنبلط او جشم ما ته واستوه ویل ئې چه راشه
چه مونږ د اونو په خوږي کښې په یوه کلي کښې سره
٣ یو رجل کوو او دوي ما لره د بدي کولو فکر کاوه ٣ او ما
دوي ته استادي واستول وم ویل چه زه لوي کار کوم او
نه توانیږم چه درکوز شم ولي د کار به آخر کیږي به دي
عرسي کښې چه زه ئې پریږدم او تا ته درکوز شم ٤ او دوي
٤ خبري په شان ئې څلور واره را واستاوه او ما د دي خبري
٥ په شان سره ځواب ورکړ ٥ او سنبلط د دي خبري په
شان خپل نوکر پنځم وار ما ته راواستاوه او په لاس کښې
٦ ئې پرانتلي الکاه نامه وه ٦ په هغې کښې لیکلي وو چه په قومونو
کښې اورولي کیږي او جشم وایي چه ته او یهودیان د
یاغي کیدلو فکر کونکي یئ دی د پاره ته دیوار بنا کوي او
ته د دي خبرو په موافق د دوي د بادشاه کیدلو د پاره
٧ یې ٧ او تا نبیان هم ودرولي دي چه په اورشلیم کښې
ستا په باب منادي وکړي و وایي چه په یهوداه کښې
یو بادشاه دی او اوس به بادشاه د دي خبرو په شان

واوروِلي شيِ نو اوس راشه چه مصلحت سره وکړو ٨ نو ما ٨
ورواستاوه و م ویل چه د دي خبرو به شان چه ته يې
وايِې شوي نه دي بلکه ته يې له خپل زړه نه تړلي يې
٩ ځکه چه دوي ټولو مو ویرولو ویل يې چه د ده لاسونه ٩
به له کار نه سست شي او هغه به جوړ کړي نه شي او
اوس اي ځما الله ته م لاسونه مضبوط کړه ⁂
١٠ او زه د شمعیاه بن دلایاه بن مهیطبئیل کور ته ١٠
ننه وتم او هغه بند کړي شوي وه او هغه وویل راځئ چه
مونږ بیت الله ته د هیکل منځ ته ور بورجل کوو او د
هیکل دروازي دِ پوري کړو ځکه چه دوي راځي چه تا قتل کړي
هو به شپې کښې به راشي چه تا قتل کړي ١١ نو ما وویل چه ١١
ځما به شان سړي دِ وتښتي څه؟ او څوک ځما به شان
دي چه هغه هیکل ته ور ننه وزي او ژوندي باتي شي زه
نه ننه وزم ١٢ او ما وپیژاند او ګوره چه الله هغه نه واستاوه ١٢
بلکه به ما باندي يې دا نبوت خبره وکړه او طوبیاه او سنبلط
هغه په کراهله اخستلي وه ١٣ او هم د دي د پاره يې په کراهاه ١٣
اخستلي وه چه زه وویرېږم او داسي به عمل راوړم او خطا
وکړم او دوي لره یو بدنام وشي چه ځما ملامتیا وکړي
١٤ اي ځما الله طوبیاه او سنبلط د دوي د دغو عملونو به ١٤
موافق او نوعدیه هغه نبیه نه او نور نبیان چه ځما
ویرونکي دي به یاد کړه ⁂
١٥ او به پنځه ویشتم د ایلول په دو پنځوس ورځو کښې ١٥
هغه دیوال سالم شه ١٦ او داسي وشوه چه ټولو دښمنانو ١٦
ځمونږ واوریدل او واړو قومونو چه ځمونږ به ګرد ګرد وو ولید
نو دوي ډیر به سترګو کښې پریوتل او پوه شول چه ځمونږ
د الله له لوري دا کار به عمل شه ١٧ او هم به دغو ورځو کښې ١٧

دېرو اشراو د یهوداه خپلي اکاه نامي طوبیاه ته آستولي هي
١٨ د طوبیاه به دوي ته ته راتللي ١٨ څکه چه ډېرېٔ یهوداه
کښې د ده سره قسم خورلي شوي وو څکه چه دي د شکنیاه
بن آرخ زوم وه او د ده زوي یوحانان د مشلام بن برکیاه
١٩ لور اخستي وه ١٩ او دوي به څما د وړاندِ د هغه د نیکیو بیان
کاوه او څما خبري به ئې هغه ته اوازه کاوه او طوبیاه اکاه
نامي را استولي چه و مِ ویروي *

# اووم باب

١ آ او داسي وشه چه دیوال بنا کړي شه او دروازه مِ ودرولي
او هغه دروانان او هغه سرودکړان او هغه لاویان و درولي
٢ شول ٢ نو مِ حناني ورور خپل او حننیاه سردار د بارو
په اورشلیم مقرر کړل څکه ده امانتدار سړي وه او له
٣ ډېرو نه زیات له الله ویریدل ٣ او ما دوي ته وویل چه
تاسي د اورشلیم دروازي تر څو پوري چه نمر تود نه شي
وازي کړي دِ نه شي او څو چه هغوي ولاړوي دروازي
دِ بندي او و دِ ټینګک اخلي او د اورشلیم له اوسیدونکو
دِ ساتونکي و درولي شي هر سړي په خپلي ساتني او هر سړي
٤ د خپل کور په مخ کښې ٤ نو هغه ښهر هر لاستي پوري
پلن او لوي وه لیکن امّت د ده په مینځ کښې لږ وو او
٥ کورونه بنا شوي نه وو ٥ او څما الله څما په زړه داکښېنود
چه زه میران او حاکمان او امّت او نسبنامو د شمیرلو
د پاره جمع کړم نو ما کتاب د نسبنامو د هغو و موند
چه وړنبي ختلي راغلي وو او په هغه کښې مِ لیکلي شوي
٦ ٦ دا هغه د صوبي زامن دي د جلاوطني له بندیوانیو ته

چه

چه نبوکدنصر بادشاه د بابل جلاوطن کړي وو او اورشلیم
۷ او یهوداه ته را وجاروتل هر سړي خپل ښهر ته ۷ هغه چه له
زروبابل سره راغلي وو یشوع نحمیاه عزریاه رعمیاه نحماني
مردکاي بلشان مسپارث بغواي نحوم او بعناه شمار د
۸ کسانو د اسرائیل سره ۸ بني پرعوش دوه زره یو سل
۹ ۱۰ او دوه اویه ۹ بني شفطیا دري سوه او دوه اویا ۱۰ بني ارح
۱۱ شپږ سوه او دوه پنځوس ۱۱ بني فحت مواب له بني یشوع
۱۲ نه او یوآب نه دوه زره او اته سوه او اته لس ۱۲ بني
۱۳ عیلام یو زر دوه سوه او څلور پنځوس ۱۳ بني زتو اته سوه
۱۴ ۱۵ او پنځه څلویښت ۱۴ بني زکاي اوه سوه او شپیته ۱۵ بني
۱۶ بنوي شپږ سوه اته څلویښت ۱۶ بني ببباي شپږ سوه
۱۷ اته ویشت ۱۷ بني عزجاد دوه زره او دري سوه او دوه
۱۸ ۱۹ ویشت ۱۸ بني ادونیقام شپږ سوه اوه شپیته ۱۹ بني بغواي
۲۰ دوه زره او اوه شپیته ۲۰ بني عادین شپږ سوه او پنځه
۲۱ ۲۲ پنځوس ۲۱ بني آطیر د حزقیاه اته نوي ۲۲ بني حاشوم
۲۳ دري سوه او اته ویشت ۲۳ بني بیضي دري سوه او څلیر
۲۴ ۲۵ ویشت ۲۴ بني حاریفا یو سل او دوه لس ۲۵ بني جبعون
۲۶ پنځه او نوي ۲۶ د بیت لحم کسان او د نطوفه یو سل او
۲۷ اته اتیاه ۲۷ د عناثوث کسان یو سل او اته ویشت
۲۸ ۲۹ ۲۸ د بیت عزماوث کسان دو څلویښت ۲۹ د قریت یعاریم
کسان او د کفیره او د بئیروت اوه سوه او دري څلویښت
۳۰ ۳۱ ۳۰ د رامه او د جبعه کسان شپږ سوه او یو ویشت ۳۱ د
۳۲ مخماس کسان یو سل او دوه ویشت ۳۲ د بیت ایل
۳۳ کسان او د عاي یو سل او دري ویشت ۳۳ او د بل
۳۴ نبو کسان دو پنځوس ۳۴ د هغه بل عیلام زامن یو زر

۳۵ دوه سوه او څلور پنځوس ۳۵ بني حاریم دري سوه او شل
۳۶ بني اریحا دري سوه او پنځه څلوېښت ۳۷ بني لود حادید
۳۷ ۳۸ او اونو اوه سوه او یو ویشت ۳۸ بني صنباه دري زره او
۳۹ نه سوه او دیرش ۳۹ هغه کوهینان د یدعیاه زامن د یشوع
۴۰ دکور نه سوه او دري اویا ۴۰ بني امیر یو زر او دوه پنځوس
۴۱ ۴۲ بني پشحور یو زر او دوه سوه او اوه څلوېښت ۴۲ بني
۴۳ حاریم یو زر او اوه لس ۴۳ هغه لاویان بني یشوع د قدمیئل
۴۴ له بني هودایا څلور اویا ۴۴ هغه سودګران د آساف زامن
۴۵ یو سل او اته څلوېښت ۴۵ هغه دروانان بني شلوم بني
اطیر بني طلمون بني عقوب بني حطیطا بني شوبای یو
۴۶ سل اته دیرش ۴۶ هغه نثنیم بني ضیحا بن حسوفا بني
۴۷ ۴۸ طباعوت ۴۷ بني قیروص بني سیعا بني فادون ۴۸ او بني
۴۹ لبانه او بني حجابا بني سلمای ۴۹ بني حانان بني جدیل بني
۵۰ ۵۱ جاحر ۵۰ بني رایا بني رصین بني نقوداه ۵۱ بني جزام بني
۵۲ عزا بني فاسیح ۵۲ بني بیسای بني معونیم بني نفیشیم
۵۳ ۵۴ ۵۳ بني بقبوق بني حقوفا بني حرحور ۵۴ بني بصلیث بني
۵۵ محیدا بني حرشا ۵۵ بني برقوص بني سیسرا بني تامح
۵۶ ۵۷ ۵۶ بني نصیح بني حطیفا ۵۷ د سلیمان د مریونو زامن
۵۸ بني سوطای بني سوفرت بني فریدا ۵۸ بني یعلا بني درقون
۵۹ بني جدیل ۵۹ بني شفطیاه بني حطیل بني پوخره ضبایم
۶۰ بني آمون ۶۰ ټول هغه نثنیم او زامن د مریونو د سلیمان
۶۱ دري سوه او دوه نوي وو ۶۱ او دا هغه دي چه د ملحي
له تل نه له تیل حرشا نه له کروب له ادون او له امیر
وتل او نه توانیدل چه د خپلو پلرونو کورونه او نسل
۶۲ و ښیي چه دوي له اسرائیل دي که نه ۶۲ بني دلایاه بني

طوبياه بني نقودا شپږ سوه او دوڅلويښت ٦٣ او له کوهينانو بني حبايه ٦٣
بني هقوص بني برزلاي هغه چه د برزلاي جلعادي له لونړو ئې ښځه
واخستله او د هغو په نوم نومري شول ٦٤ دوي خپله شجره د هغو په ٦٤
نسب ناموکښې ولټوله او ونه مندلي نه شوه ځکه دوي له کوهيني نه
پليت وګڼلي شول ٦٥ او ترشاتا ودوي ته وويل چه له قدس الاقدس ٦٥
نه خوړي تر څو پوري چه هغه کوهين د اوريم او د تميم سره پورته نه
شي ٦٦ ټول جماعت واړه سره د وڅلويښت زره او دري سوه او ٦٦
شپيته وو ٦٧ بې د دوي د مريونو او د دوي وينځو چه هغوي اوه زره ٦٧
او دري سوه او اووه ديرش وو او د دوي سرودګران او سرودګراني
دوه سوه او پنځه څلويښت ٦٨ او د دوي آسونه اوه سوه او شپږ ٦٨
ديرش او کچري ئې دوه سوه او پنځه څلويښت ٦٩ او اوښان ئې څلور ٦٩
سوه او پنځه ديرش او خرونه شپږ زره او اوه سوه او شل ٧٠ او ځنو ٧٠
له پلري سردارانو د پاره د کار مدد کاري هم وکړه . هغه ترشاتا خزاني
ته يو زر دراهمه د زرو او پنځوس کټوري او پنځه سوه او ديرش کتاني
جامي د کوهينانو د پاره ٧١ او ځنو له پلري سردارانو د کار خاني خزاني ٧١
ته شل زره دراهمه د سرو زرو او دوه زره او دوه سوه منه د
سپينو زرو وركړل ٧٢ او هغه چه نور امّت وركړل شل زره دراهمه ٧٢
د سرو زرو او دوه سوه منه د سپينو زرو او اووه شپيته کتاني جامي
د کوهينانو ٧٣ او کوهينان او لاويان او دروانان او سرودګران او ځني ٧٣
د امّت او نتنيم او ټول اسرائيل په خپلو ښهرونوکښې اوسيدل ؏

## آتم باب

١ او چه اوومه مياشت شروع شوه نو بني اسرائيل په خپلو ښهرونو ١
کښې وو ـ نو ټول امّت لکه يو سړي هغه ميدان ته چه د اوبو دروازي
د وړاندي دي راجمع شه او عزرا کاتب ته ئې وويل چه راوړه که نه
هغه کتاب د توريت د موسيٰ چه خداوند پري اسرائيل ته فرمان
وکړ ٢ نو عزرا هغه کاتب هغه توريت د سړو او د ښځو د جماعت ٢

او د ټولو فهمدارانو د اوریدلو د وړاندي په اوّلی ورځي د اوومي میاشتي
۳ کښی راوړ ۳ او په هغه کښی ئې د هغه چوک د وړاندي چه د اوبو
د دروازي د وړاندي دي له صباح راښځانه ترنیمي ورځي پوري د
سړو او د ښځو او د فهمو الو د وړاندي ولوست او د ټول امّت
۴ غوږونه د توریت دکتاب په لوري وو ۴ او عزرا کاتب د لرګي
په منبر چه د دي کار د پاره ئې جوړ کړي وه ودریده او د ده په څنګ
کښی متتیاه او شمع او عنایاه او اوریاه او حلقیاه او معسیاه د ده
په ښي لوري ودریدل او په کینړ ئې پدایا او میشائیل او ملکیاه
۵ او حشوم او حشبدّانه او زکریاه مشلام ۵ او عزرا د ټول امّت
د وړاندي کتاب وغوړاوه ځکه چه دي په ټول امّت د پاس وه او چه
۶ هغه ئې وغوړاوه نو ټول امّت ودریده ۶ او عزرا خداوند لوی الله ته
مبارکي ورکړه او ټول امّت په جواب کښی آمین آمین وویل لاسونه
ئې پورته کړل او ټیټ شول او خداوند ته ئې په خپلو مخونو په زمکي
۷ سجده وکړه ۷ او یشوع او باني او شربیاه یامین عقوب شبتیاي هودیاه
معسیاه قلیطا عزریاه یوزاباد حنان پلایا او هغه لاویانو امّت په تورات
۸ فهم ورکاوه او امّت په خپلي خپلي د ځایني وه ۸ او دوي د الله د توریت
کتاب لفظ په لفظ سره لوست او د معني تفسیر ئې کاوه او دوي ئې په هغو
۹ لوستلو فهمداران کړل ۹ او نحمیه یعني ترشاتا او عزرا هغه کوهین هغه
کاتب او لاویانو چه د امّت پوهونکي وو ټول امّت ته ئې وویل چه
داورځ ستاسو د یهوه الله مقدسه ده تاسي مه ویرکوئ مه ژاړئ
ولي چه ټول امّت ژړا کونکي وه چه کلام د توریت ئې
۱۰ واوریده ۱۰ او ده هغه ته وویل لاړ شئ ځاربه ځیزونه خورئ
او خوږه څښئ او حاځخه چه څه طیارنه وي هغه ته برخه
واستوئ ځکه چه داورځ ځمونږ د خداوند د پاره مقدسه
ده او غم مه کوئ ځکه چه خوشي د خداوند ستاسو زور
۱۱ دي ۱۱ او لاویانو به ټول امت پټه خوله کاوه وویل به ئې
چپ شي ځکه چه داورځ مقدّسه ده تاسي غم مه کوئ

١٢ ١٢ او ټول امّت لاړنه چه وخوري او وڅښي او بخري
واستوي او لويه ښادي وکړي ځکه چه دوي به هغو خبرو
فهمداران وو چه هغو ورته وپوهولي ❊
١٣ ١٣ او به دويمه ورځ ټول پدري رئيسان د ټول امّت او
کوهينان او لاويان عزرا کاتب ته ورجمع شول چه د
١٤ توريت په خبرو ئې هوشمندوي ١۴ او دوي په هغه
توريت کښي چه خداوند د موسىٰ په لاس پر وفرمائيل
ليکلي شوي وموندل چه بني اسرائيل به او مه مياشت
١٥ په عيد کښي په جنګړو کښي اوسي ١٥ او چه په ټولو ښهرونو
کښي دِ ندا واوروي او مشهور کوي د دوي به ټولو ښهرونو
او په اورشليم کښي چه غره ته ووزئ او د زيتون ښاخونه
او د بيدياني زيتون ښاخونه او د اوبښتي ښاخونه او د
کجورو ښاخونه او ګڼو ونو ښاخونه د جونګړو د جوړولو
١٦ د پاره راوړئ لکه چه ليکلي شوي دي ١٦ نو امّت ووت
او را ئې وړل او د ځانونو خپلو د پاره ئې او هر يوه به
خپل بام باندي او به خپلو غوليو کښي او د بيت الله
به غولي کښي او د اوبو د دروازي به چوک کښي او د
١٧ افرائيم د دروازي به چوک کښي ١٧ او هغه جماعت چه
له بند نه جار راغلي وو جونګري ئې جوړي کړي او به
جونګړو کښي اوسيدل ځکه چه بني اسرائيل د يشوع بن
نون له ورځو تر دي ورځو پوري داهسي کار کړي نه وه
١٨ او بي حده لويه ښادي وه ١٨ او د الله به توريت کښي
به ئې ورځ په ورځ لوستل: له اوّلي ورځي تر آخري ورځي
پوري: او اووه ورځي به ئې عيد کاوه او به آتمه ورځ به
ئې د دستور به موافق توليدل جماعت کاوه ❊

# نهم باب

۱ ۱ او په څلور ویشتمه ورځ د دې میاشتې بني اسرائیل
په روژې لړلو جمع شول او په ټیرې او خاورې سره
۲ په دوی باندې ۲ او د اسرائیل نسل له ټولو بیګانه ؤ زامنو
خپل ځانونه جدا کړل او ودریدل او په خپلو خطاؤ او د
۳ خپلو پلرونو په ګناهونو ئې اقرار وکړ ۳ او په خپلې دریدنې
کښې پورته شول او د یهوه الله د دوی د توریت کتاب
ئې تر څلورمې حصې د ورځې پورې لوست او څلورمې به ئې
۴ یهوه الله خپل ته اقرار کونکې او سجده کونکې وو ۴ نو له لاویانو
لاویانو په زینه ودریدل یشوع او باني او قدمیئل شبنیاه
او بُنّی او شیربیاه او باني او کناني او یهوه الله خپل ته ئې
۵ په لوی آواز سره ناره وکړه ۵ او یسوع او قدمیئل باني حشبنیاه
شیربیاه هودیاه شبنیاه پتحیاه لاویانو وویل پورته شئ
یهوه الله ستاسې ته له ازل نه تر ابده پورې مبارک ووایئ او
ستا د جلال نوم دِ مبارک وِي چه په ټوله مبارکې او حمد باندِ
۶ پاك دې ۶ ته هغه یهوه د یواځې خپل یې هغه آسمانونه
تا جوړ کړل او آسمان د آسمانونو او د هغو ټول فوځ: هغه
زمکه او هرڅه چه په هغه باندِ دي او دریابونه او هرڅه چه
په هغو کښې دي او ته هغه ټول ژوندي لرې او د آسمان فوځ
۷ تا ته سجده کوي ۷ ته هغه خداوند هغه الله یې چه ابرام دِ
غوره کړ او د کسدیانو له اُور دِ راویوست او د ده نوم دِ ابراهیم
۸ کېښود ۸ او تا د ده زړه ستا د وړاندې آمین وموند او ورسره
دِ وعده وکړ چه د کنعانیانو د حتیانو د اموریانو د فرزیانو د
یبوسیانو د جرجاشیانو زمکه به تا ته درکړم او ستا اولاد ته

به یې ورکړم او تا خپله وعده قایمه کړه ځکه چه ته صادق
یې ۹ او تا په مصر کښې څمونږ د پلرونو خواري ولیده او د بحر ۹
سوف څخه دِ د دوی ناري واوریدې ۱۰ او تا په فرعون باندِ ۱۰
نښې او عجائبات کېښودل او د ده په ټولو مریونو او په ټول
خلق د زمکې سره ځکه چه ته پوهیدلې چه دوی په هغو
باندِ ضِد وکړ او تا د خپل ځان د پاره نوم حاصل کړ لکه په
دې ورځ ۱۱ او تا د دوی د وړاندې دریاب څیرې کړ او دوی ۱۱
د دریاب په مینځ کښې په وچه تیر شول او تا د دوی پسې
تللونکې په ژورې کښې وغورزول لکه کاڼړې په قوي اوبو کښې
۱۲ او تا دوی ته د ورځې د اوریځې په ستنې او د شپې د اور په ۱۲
ستنې بیول تا چه دوی لره په هغې لارې کښې چه په کښې
ځې رڼړا ورکوې ۱۳ او ته د سینا په غره باندِ راکوز شوې او ۱۳
د دوی سره دِ له آسمانه کلام وکړ او دوی ته دِ راست حکمونه
او رښتنې توریت حقونه او نیک فرضونه ورکړل ۱۴ او تا ۱۴
دوی ته خپل قدوس سبّت ور پوهاوه او حکمونه او حقونه
او تورات دِ د خپل بنده موسیٰ په لاس ورته وفرمایل
۱۵ او د دوی د لوږې د پاره دِ له آسمانو ډوډۍ ورکړه او د دوی ۱۵
د تندې د پاره دِ له لویې پرښې اوبه ورته راویستلې او ور
ته دِ امر وکړ چه دوی دِ لاړ شي او په هغه زمکه دِ وارثت
اخلې چه د دوی د ورکولو د پاره دِ خپل لاس پورته کړې وه
۱۶ لیکن دوی او څمونږ پلارونه ضِد وکړ او دوی خپلې غاړې سختې ۱۶
کړې او ستا حکمونه یې وا نه وریدل ۱۷ او له اوریدنې یې انکار ۱۷
وکړ او هغه عجائبات چه تا له دوی سره وکړل په یاد یې نه
کړه او خپلې غاړې یې سختې کړې او له خپلې سرکښې یې یو
سردار مقرر کړ چه خپلې غلامۍ ته یې بیرته وګرزي لیکن

ته غفور او کریم او رحیم الله یې او بد صبروال د خفګې او
18 ډیر مهربان نو دوي د بر نه ښول [18] سره له دې چه دوي
د خپلو ځانونو د پاره يو ويلي کړي سخې جوړ کړ او وئې ويل چه
دا هغه الله ستا دی چه له مصرئ را وختلي او دوي لويه
19 سپکه وکړه [19] او تا په خپلو ډيرو رحمتونو سره هغوي په بيابان
کښې نه پرېښودل او د اوريځې ستنيه د دغوله پاسه لرې نه
شوه چه د ورځې به لاري د دوي رهنمائي وکړي او نه ستنيه
د اور په شپې کښې تا چه دوي لره رڼا وکړي او هغه لاري چه
20 په کښې به دروميې [20] او تا دوي ته خپل نیک روح ورکړ چه
هوش ورته کوي او د دوي له خولو د مَنّ منع نه کړ او د دوي
21 تندې ته د اوبه ورکړې [21] او تا د دوي پرورش ترڅلوېښتو
کلونو پورې په بيابان کښې وکړ او هيڅ محتاج نه شول او جامې
22 زړې نه شوې او پښې ئې پرسيدلې نه شوې [22] او تا دوي ته
بادشاهتونه او قومونه ورکړل او طرفونو پورې د ويش خواره
کړل او دوي د سيحون د زمکې او د بادشاه حشبون د زمکې
23 او د باشان د بادشاه عوج د زمکې وارثان شول [23] او تا د دوي
زامن د اسمان د ستورو په شان ډير کړل او دوي د هغې
زمکې ته ور ننه وستل چه د هغې په باب د د دوي پلرونو
24 ته وويل چه ور ننه به ځي او ميراث به ئې اخلي [24] او د دوي
زامن ننه ووتل او په ميراث ئې واخسته او تا دوي ته د
دغې زمکې او سيدونکي هغه کنعانيان ذليل کړل او هغه د
د هغو له بادشاهانو او د هغې زمکې له قومونو سره د دوي
لاسونو ته حواله کړل تا چه دوي له هغو سره د خپلې رضا په
25 شان کار وکړي [25] او دوي مضبوط ښهرونه واخستل او شړبه
زمکه او دوي د ټولو غورو څيز ډک کورونه او کندلې کوهې

او تاکستانونه او زيتون او ميوه داري ونې په کثرت په ميراث
۲۶ کښې مزه کاوه ۲۶ او دوي سرکښ شول او درنه باغيان شول
او ستا تورات يې د خپلې د وروستو وغورزاوه او هغه ستا
نبيان چې به دوي به يې شاهدي کوله چې هغوي بيرته
۲۷ درو ګرزوي قتل کړل او دوي لويه سپکه وکړه ۲۷ نو تا دوي
د دوي ضرر رسونکيو ولاسو ته ورکړل او هغوي دوي لره
ضرر رساوه او د خپلې ضرر په وقت کښې يې تا ته ناره وکړه
او تا له آسمانه واوريده او د خپلو ډيرو رحمتونو په موافق
دِ دوي ته خلاصونکې ورکړل چې دوي يې د دوي ضرر
۲۸ رسونکو له لاسونو خلاص کړل ۲۸ او چې دوي لره آرام وشوه
نو وخپلې بدکارې ته يې ستا د وړاندې ګرزيدل نو تا دوي د دوي
ودښمنانو په لاسونو پريښودل او هغو به دوي رياست وکړ
بيا وجاروتل او ناري يې وکړې او تا له آسمانه واوريدل او
د خپلو ډيرو رحمتونو په موافق دِ ترډيرو وقتونو پورې خلاص
۲۹ را کاږل ۲۹ او تا دوي ته شاهدي ورکوله چې د خپل تورات
په لورې يې را وګرزوي او دوي ضد وکړ او ستا حکمونه يې
نه اوريدل او ستا عدالتونو په خلاف يې خطا وکړه هغه
چې که يې سړي وکړي نو په کښې به ژوندي اوسي او دوي
د سرسري اوږه يې ورکړه او خپل غاړه يې عناد کړ او وا يې
۳۰ نه وريدل ۳۰ او تا ترډيرو کالو پورې په دوي باندِ زغم را
ښکاوه او په خپل روح سره دِ د خپلو نبيانو په لاس په
دوي شاهدي وکړه او دوي ونه نغوتل نو تا د زمکې
۳۱ د قومونو په لاس کښې ورکړل ۳۱ او تا په خپلو ډيرو
رحمتونو دوي فنا نه کړل او نه دِ پريښودل ځکه څنګه
۳۲ او رحيم الله يې ۳۲ او اوس اي څښتن الله هغه الله

ال اکبر

ال اکبر الجبّار ال ويره ناک ساتندوي د وعدي او د
مهرباني يي هغه تول مشقتونه ستاد وړاندي دِ وړوکی
وګڼلي نه شي چه مونږ ته او ځمونږ بادشاهانو ته او ځمونږ
سردارانو ته او ځمونږ کوهينانو ته او ځمونږ نبيانو ته او ځمونږ
پلرونو ته او ستا تول امّت ته د اشور د بادشاهانو له ورځو
٣٣ تر دي ورځي پوري را رسيدلي دي ٣٣ او په هر څه کښي چه په
مونږ باندي راغلل ته صادق يي چه تا په رښتيني سره کار
٣٤ وکړ او مونږ شرارت وکړه ٣٤ او ځمونږ بادشاهانو او ځمونږ
سردارانو او ځمونږ کاهنانو او ځمونږ پلرونو ستا په تورات
عمل ونه کړ او ستا حکمونو ته ئي غوږونه نه کيښودل او هغو
٣٥ شاهديو ته چه تا په دوي شاهدي وکړه ٣٥ او دوي په
خپلي بادشاهي او ستا په هغي ډيري نيکئ کښي چه دوي
ته دِ ورکړه او په هغي ارتي او ښاربي زمکي کښي چه تا د دوي
د وړاندي کيښوده ستا عبادت ئي و نه کړ او له خپلو
٣٦ بدو کارونو نه را و نه ګرزيدل ٣٦ ګوره نن ورځ مونږ
مريونه يو او هغه زمکه چه تا ځمونږ پلرونو ته ورکړه چه
حاصل او ښيګړه ئي وخوري ګوره مونږ په هغه باندي
٣٧ مريونه يو ٣٧ او د دغي په کثرتوالي د هغو بادشاهانو د پاره
راوړي چه تا په مونږ باندي ځمونږ د خطاؤ په سبب
مقرر کړل او دوي ځمونږ په صورتونو تسلط کوي او ځمونږ
په څارويو د خپل رضا په موافق اختيار لري او مونږ په لوي
٣٨ تنګي کښي يو ٣٨ او د دغو تولو په سبب مونږ تينګه وعده
کوو او ليکو ئي او ځمونږ سرداران او ځمونږ لاويان او ځمونږ
کوهينان ور باندِ مُهر لګوي *

لسم باب

# لسم باب

۱ او هغوي چه مُهر ئې کړ نحمیه هغه ترشاتا بن حکلیاه
۲ ۳ او صدقیاه ۲ سرایاه عزریاه ارمیاه ۳ فشحور اسریاه ملکیاه
۴ ۵ ۶ ۴ حطوش شبنیاه ملوح ۵ حاریم مریموث عوبدیاه ۶ دانیال
۷ ۸ جنتون باروخ ۷ مشلام ابیاه او میامین ۸ معزیاه بلجيَ او
۹ شمعیاه دغه خو کوهینان دي ۹ او لاویان او یشوع بن ازنیاه
۱۰ بنوي له بني حیناداد نه قدمیئل ۱۰ او د دوي ورونړه
۱۱ شبنیاه هودیاه قلیطا فلایاه حانان ۱۱ میخا رحوب حشبیا
۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۲ زکور او شربیا شبنیاه ۱۳ هودیاه باني بنینو ۱۴ سرداران د
۱۵ خلقو د پرعوش پحث مواب عیلام زتو باني ۱۵ بني عزجد
۱۶ ۱۷ ۱۸ بیبای ۱۶ ادونیاه بغواي عادین ۱۷ اطیر حزقیاه عزور ۱۸ هودیاه
۱۹ ۲۰ حشوم بیصای ۱۹ حاریف عناتوث نیبای ۲۰ مجبیعاش
۲۱ ۲۲ مشلام حیزیر ۲۱ مشیزبئیل صادوق یدوع ۲۲ پلطیاه حانان
۲۳ عنایاه ۲۳ هوشع حننیاه حشوب ۲۴ هلوحیش پلحا
۲۵ ۲۶ شوبیق ۲۵ رحوم حشبناه او معسیاه ۲۶ او اخیاه حانان
۲۷ ۲۸ عانان ۲۷ ملوک حریم بعنه ۲۸ او باقي امّت او کوهینان او
لاویان او دروانان او سرودګوان او نتنیم او هغه ټول چه
د زمکي له قومونو نه د الله و توریت ته وربیل شوي وو
او د دوي ښځي او د دوي زامن او د دوي لونړي ټول چه
۲۹ صاحبان د پوهه او د فهم وو ۲۹ له خپلو ورونړو او له خپلو
غټانو سره په قسم او په ښیري کښې تینګ نښتل چه دوي
به په تورات د الله چه په لاس د موسیٰ بنده د الله
ورکړي شه دروږي او چه ټول فرضونه د یهوه خداوند
څمونږ وساتو او عمل پرکوو او د ده عدالتونه او د ده حکمونه
۳۰ ۳۰ او چه مونږ به خپلي لونړي د زمکي قومونو ته نه ورکوو

او

۳۱ او نه به د هغو لونړي خپلو ځامنو ته نيسو ۳۱ او که د زمکي
قومونه د سبت په ورځ څه خريد وفروخت يا د غله تيني
د خرڅولو د پاره راوړي نو مونږ به ئې د سبت په ورځ ورنه
نه اخلو او نه په بلي مقدّسي ورځي ورنه اخلو او چه مونږ د هغه
۳۲ اووم کال او د هر پور غوښتنه به پريږدو ۳۲ او مونږ په خپلو
ځانونو فرضونه مقرر کړل چه مونږ به هر کال دريمه د مثقال
ځمونږ د بيت الله د خدمت د پاره په ځانو خپلو باندي
۳۳ وگرزوو ۳۳ د نذرونو د ډوډيُ د پاره او د مدامي هديي او د
مدامي سيزونکي قرباني د پاره او د سبتونو او د نوي مياشتو
او د جمع عيدونو او د مقدسو څيزونو د پاره او د خطا ذبيحي
د کفاري د پاره په اسرائيل باندي او ځمونږ د بيت الله د هر
۳۴ کاريگري د پاره ۳۴ او مونږ د کوهينانو او د لاويانو او د خلقو
په مينځ کښي د لرګيو د قرباني په باب زړ هسک واچاوه
چه هغه ځمونږ د بيت الله ته ځمونږ د پلرونو د کورونو په
موافق په لايقو زمانو کښي کال په کال وررسوي چه ځمونږ د
خداوند الله په مذبح باندي سيزلي شي لکه چه په توريت
۳۵ کښي ليکلي دي ۳۵ او چه مونږ به د خپلي خاوري ورنبي بر
او د ټولو ونو د ميوي ورنبي بر کال په کال بيت يهوه ته
۳۶ د ننه راوړو ۳۶ او چه مونږ به د خپلو زامنو او د خپلو
څارويو ړنبزيز لکه چه په توريت ليکلي شوي دي او
ړنبزيزي ځمونږ د غواوُ او ځمونږ د غيلو به ځمونږ د بيت
الله ته هغو کوهينانو ته چه ځمونږ د الله د خادمان دي
۳۷ د ننه راوړو ۳۷ او چه مونږ به اوّله دليه او کړه اوړه خيل
او خپلي پورته کړي قرباني او د ټولو ونو ميوي او شيره
او تازه تيل کوهينانو ته د خداوند ځمونږ د الله بيت خونو

ته دننه ورورو او دخپلو خاوري عشر لاويانو ته تاچه
لاويان به هغه ښهرونو کښې چه مونږ به کښې مشقت
۳۸ کوو عشر اخلي ۳۸ او چه لاويان عشر اخلي نو هغه کوهن
ابن هارون دِ له لاويانو سره وي او لاويان دِ عشر
د عشرونو څمونږ د الله د بيت خونو ته بيت المال ته
۳۹ ور وړي ۳۹ ځکه چه بني اسرائيل او بني لاوي دِ دغلي
او د شيرې او د تازو تيلو پورته کړي قرباني وخونو ته ور
وړي چه هلته د پاکي لوښي او هغه کوهينان خدمتګاران
او دروان او سرودګران دي او مونږ دِ خپل الله کور ترک
نه کړو *

# يوولسم باب

۱ ۱ او دقوم سرداران به اورشليم اوسيدل او باقي امّت
زړهسک واچاوه چه له لسو دِ يو راولي چه به اورشليم
کښې واوسي هغه مقدّس ښهر او هغه نه نوري فرقي
۲ دِ به نورو ښهرونو کښې ۲ او امّت هغو ټولو کسانو ته
چه ځانونه ځارول چه به اورشليم کښې اوسي برکت
۳ ورکړو ۳ او دا د هغه صوبي سرداران دي چه به اورشليم
اوسيدل او د يهوداه به ښهرونو کښې هريو به خپل اختني
کښې به خپل خپل ښهر کښې اسرائيل هغه کوهينان
او لاويان او نتنيم او د سليمان د نوکرانو اولاد اوسيدل
۴ ۴ او له بني يهوداه او له بني بنيامين ځني به اورشليم
کښې اوسيدل له بني يهوداه اعثاياه بن عزّياه بن
زکرّياه بن امرّياه بن شفطياه بن مهلليل له بني فارخ
۵ ۵ او معسياه بن باروک بن کلحوزه بن حزاياه بن عداياه

۶ بن یویاریب بن زکریاه بن شیلوني ۶ تول بني فارخ چه
په اورشلیم کښې اوسیدل څلور سوه او اته شپیته بناغلي سړي
۷ وو ۷ او دا بني بنیامین دي صلو بن مشلام بن یوعید بن
۸ پدایاه بن قولایاه بن معسیاه بن ایتئیل بن یعشیاه ۸ او پس
۹ له دغه جبّي سلّي نه سوه او اته ویشت ۹ او په دغو باندې
یوئیل بن زکري مختار وه او یهوداه بن هسنواه دوېم په هغه
۱۰ ۱۱ ښهر باندې ۱۰ له هغو کوهینانو یدعیاه بن یویاریب یاکین ۱۱ او
سرایاه بن حلقیاه بن مشلام بن صادوق بن مرایوث بن
۱۲ اخیطوب رائیس د بیت الله ۱۲ او د دوي ورونړه د بیت د کار
کارداران اته سوه او دوه ویشت او عدایه بن یروحام بن
۱۳ پللیاه بن امصي بن زکریاه بن پشحور بن ملکیاه ۱۳ او د ده
ورونړه پدري سرداران دوه سوه او دوه څلویښت او عمشي
۱۴ بن عزرئیل بن اخزاي بن مشلیموث بن امیر ۱۴ او د ده
ورونړه جبّاران د قوّت یو سل اته ویشت او زبدئیل بن
۱۵ هجّدولیم په دوي مختار وه ۱۵ او له لاویانو شمعیاه بن
۱۶ حشوب بن عزریقام بن حشبیاه بن بوني ۱۶ او شبتاي او
یوزاباد د لاویانو له سردارانو د بیت الله د باندې په کار باندې وو
۱۷ ۱۷ او متنیاه بن میکاه بن زبدي بن آساف سردار د
تشکّر د دعا ویلو شروع سردار او بقبقیاه دوېم د ده د ورونړو
په مینځ کښې او عبدا بن شموع بن جلال بن یدوثون
۱۸ ۱۸ تول لاویان په مقدس ښهر کښې دوه سوه څلور اتیه
۱۹ وو ۱۹ او هغه دروانان عقوب او طلمون او د دوي ورونړه
۲۰ نګهبانان د دروازو یو سل دوه اویا ۲۰ او نور اسرائیل له
هغو کوهینانو او له هغو لاویانو په تولو ښهرونو د یهوداه کښې
۲۱ هر سړي په خپل میراث کښې وه ۲۱ او هغه نثنیم په اوفل

کښې او سيدل او ضيحا او جشپا په نثنيم باندي وو
٢٢ او د لاويانو مختار په اورشليم کښې عزي بن باني بن ٢٢
حشبياه بن متنياه بن ميکا له بني آساف سرودګران
د بيت الله په کار باندي ٢٣ ځکه چه د بادشاه حکم په دوي ٢٣
باندي دا وه چه په سندري ويونکو باند د دهري هري
ورځي خبري اسانتداري وي ٢٤ او فتحياه بن مشيزبئيل ٢٤
له بني زرح بن يهوداه په ټولو خبرو د امّت کښې د بادشاه
د لاس ځنه وه ٢٥ او په حصارونو د هغو په پټو کښې له بني ٢٥
يهوداه نه په قريت اربع کښې او د هغو په کليو کښې او په
ديبون او د هغو په کليو کښې او په يقبځئيل او د هغه په
حصارونو کښې او سيدل ٢٦ او په يشوع او په مولاده او په ٢٦
بيت پالط کښې ٢٧ او په حصرشوعال کښې او په بيرسبع ٢٧
او د هغو په کليو کښې ٢٨ او په ځقلغ او په مکونه او د ٢٨
هغه په کليو کښې ٢٩ او په عين رمون او په ځرعاه او په ٢٩
يرموث ٣٠ زانوح عدلام او د دغو حصارونو کښې او په ٣٠
لخيش او د هغه په کليو کښې او عزيقه او د هغه په کليو
کښې : دوي له بيرسبع نه د هنوم تر خوري پوري
ارام کاوه ٣١ او بني بنيامين له جبع نه تر مخماش او ٣١
عياه او بيت ايل او د دغو تر کليو پوري ٣٢ عناتوث نوب ٣٢
عنينه ٣٣ حاځور رامه جتايم ٣٤ حاديد ځبوعيم نبلاط ٣٣ ٣٤
٣٥ لود او اونو د تراشانو په خوري کښې ٣٦ او له لاويانو ٣٥ ٣٦
د يهوداه له حلقونو ځني بنيامين لره وو ❋

## دوولسم باب

آ او دا هغه کوهينان او لاويان دي چه له زرُبابل بن شالتئيل ١

٢ اویشوع سرایاه اویرمیاه اوعزرا سره راغلل ٢ اسریاه ملوک
٣ ٤ حطوس ٣ شکنیاه رحوم مریموت ٤ عدو جنتوي ابیاه
٥ ٦ ٧ ٥ میامین معدیاه بلجه ٦ شمعیاه یواریب یدعیاه ٧ صلّو عاموق
حلقیاه یدعیاه دغه د کوهینانو سرداران دي او د دوی ورونړه
٨ د یشوع په ورځو کښې ٨ او لاویان یشوع بنوي قدمیئیل
شربیاه یهوداه متنیاه ده او د ده ورونړه په حمد ویلو
٩ باندي وو ٩ او بقبقیاه او عنّو د دوی ورونړه د دوی د
١٠ وړاندي پهره دارانو د پاره ١٠ او یشوع یویاقیم وزیږاوه او
یویاقیم الیاشیب وزیږاوه او الیاشیب یویاداع وزیږاوه
١١ ١١ او یویاداع یوناثان وزیږاوه او یوناثان یدوع وزیږاوه
١٢ ١٢ او د یویاقیم په ورځو کښې کوهینان پدري سرداران دا
١٣ وو د سرایاه مرایاه او د یرمیاه حننیاه ١٣ او د عزرا
١٤ مشلّام او د امریاه یهوحانان ١٤ او د ملیکو یوناثان
١٥ او د شبنیاه یوسف ١٥ او د حریم عدنا او د مرایوث
١٦ حلقاي ١٦ او د عدّو زکریاه او د جنتون مشلّام ١٧ د ابیاه
١٧ ١٨ زکري د منیامین د موعدیاه پلطاي ١٨ او د بلجه
١٩ شموع د شمعیاه یهوناثان ١٩ او د یویاریب متّني او د
٢٠ ٢١ یدعیاه عزّي ٢٠ د سلّاي قلّاي د عاموق عابر ٢١ د حلقیاه
٢٢ حشبیاه او د یدعیاه نتنئیل ٢٢ او لاویان د الیاشیب
او یویاداع او یوحانان په ورځو کښې او یدوع پدري سرداران
لیکلي شوي وو او هغه کوهینان د داریوس فارسي په بادشاهي
٢٣ ٢٣ بني لاوي پدري سردارانو د روز نامې په کتاب کښې او
یوحانان بن الیاشیب تر ورځو پوري لیکلي شوي دي
٢٤ ٢٤ او د لاویان سرداران حشبیاه او شربیاه او یشوع
بن قدمیئیل او د دوی ورڼرو د دوی په برابري د ثنا او

د حمد کوئ د پاره موافق د حکم د داؤد مرد الله ساتنه
په مقابل د ساتني ۲۵ متنیاه بقبقیاه او عوبدیاه مشلّام طلمون ۲۵
عقوب ساتونکي د دروانان وو د هغو دروازو د انبرخاني په
ساتني کښې ۲۶ دغه د یویاقیم بن یشوع بن یوځاداق په ۲۶
ورځو کښې وو او په ورځو د نحمیاه پیشوا او عزرا کوهین
هغه کاتب ※
۲۷ او د اورشلیم د دیوال په مخصوصولو هغو لاویان له ټولو ۲۷
ځایونو را طلب کړل چه اورشلیم ته راځي ولي چه په خوشي
او په حمد او په سرود په ژنګولو په ربابونو او په ستارونو
سره مخصوصي په عمل راوړي ۲۸ نو د سرودګرو زامن د ۲۸
اورشلیم د شاوخوا له میدانه او د نطوفاتیانو له حصارونو
نه ځانونو خپلو را جمع کړل ۲۹ او له بیت جلجال او د ۲۹
جبع او د عزماوت له پټو نه ځکه چه سرودګرانو د
خپلو ځانو د پاره د اورشلیم په ګرداګرد حصارونه بنا کړي
وو ۳۰ او هغو کوهینانو او هغو لاویانو ځانونه خپل پاکي وکړه او ۳۰
امّت او دروازي او دیوال ئي پاک کړل ۳۱ او د یهوداه سرداران ۳۱
م په دیوال وخیژول او د حمد کونکو م دوه لوئي فرقي
مقرري کړي او یوه په ښي لوري په دیوال باندي د ډیران
د دروازي په لوري لاړه ۳۲ او ورپسي هوشعیاه او نیم ۳۲
سرداران د یهوداه تیر شول ۳۳ او عزریاه عزرا مشلّام ۳۳
۳۴ یهوداه او بنیامین او شمعیاه او یرمیاه ۳۵ او د کوهینانو ۳۴ ۳۵
زامنو په توریو سره زکریاه بن یوناثان بن شمعیاه بن ۳۶
متنیاه بن میکایاه بن زکور بن آساف ۳۶ او د ده ورونه
شمعیاه او عزرئیل او مللئ او جللئ ماعي نتنئیل او
یهوداه حنانی د داؤد مرد الله د سرود په کالو سره

۳۷ او عزرا کاتب د دوي د وړاندي ۳۷ او د دروازي د چینی
څخه چه د دوي په برابر وه د داؤد د ښهر په زینه چه
د دیوال د ختني څخه پاس د کور د داؤد د اوبو تر دروازي
۳۸ څخه د مشرق له لوري ور وختل ۳۸ او دویمه فرقه د حمد
ویونکو د دوي په برابر تلونکي وو او زه د دوي د ورستو
او نیم امّت به دیوال باندي وه د تنورونو له برج له پاسني
۳۹ نه تر پلن دیوال پوري ۳۹ او د افرائیم د دروازي له پاسَ
او د زړي دروازي له پاسَ او د ماهي د دروازي له پاسَ
او د حننئیل برج او د همیه د برج د وزو تر دروازي پوري
۴۰ او دوي د زندان د دروازي څخه ودریدل ۴۰ او له حمد
ویونکو نه دوه فرقي په بیت الله کښي ودریدلي او زه او
۴۱ نیم حاکمان راسره ۴۱ او کوهینان الیاقیم معسیاه منیامین
۴۲ میکایاه الیوعناي زکریاه حننیاه له تورو سره ۴۲ او معسیاه
او شمیاه او العازار او عزّي او یوحنان او ملکیاه او عیلام او عازر
او سرودګرانو او یزرحیاه مختار د دوي هسک سرود غږاوه
۴۳ ۴۳ او په دغي ورځي ذبیحي کړي او خوښي کوله ځکه چه الله
دوي په لوي خوښي سره خوښي کړل او ښځي هلکان هم شه
خوش وو او د اورشلیم د خوښي اواز تر لري پوري اوریدلي
۴۴ ۴۴ او په دغي ورځي څو کسان د خزاني په خونو باندي
د پیښکښیو او د ورنبیومیوو او د عشرونو مختاران مقرر
شول چه په هغو کښي د ښهرونو د پټو حصي د توریت
را جمع کړي د کوهینانو او د لاویانو د پاره ځکه چه یهوداه
۴۵ په هغو کوهینانو او لاویانو چه ولاړ وو خوشحاله وو ۴۵ او
ساتونکي ساتنه د الله خیل او ساتنه د پاکي کولوي وکړه
او سرودګرانو او دروانانو هم موافق د حکم د داؤد او د

٤٦ ده د څوي سلیمان ٤٦ ځکه چه د داؤد او د آسف
په ورځو کښې له قدیم نه سردارد سرودگرانو وه او د الله
٤٧ د ثنا او د حمد سرودونه به وو ٤٧ او ټول اسرائیل به
د زربابل په ورځو کښې او د نحمیه په ورځو کښې د سرود-
گرانو او د دروانانو د هری ورځي نصیبي دهغه په ورځ کښې
ورکولي او دوي به د لاویانو د پاره مقدس کاوه او
لاویانو به د بني هارون د پاره مقدس کاوه ٭

# دیارلسم باب

١ آ او په دغي ورځي کښې دوي د موسیٰ په کتاب کښې
د امت په غوږونو کښې لوستل کاوه او په هغه کښې
دا لیکلي مندلي شول چه عموني او موابي به د الله په
٢ جماعت کښې ترابده پوري داخل نه شي ٢ چه دوي به
یهودیٍ او په اوبو سره د اسرائیل قدم مخي ته نه ورغلل
بلکي دوي بلعام د دوي د پاره په کرایه وانست چه په
دوي باندي لعنت وکړي او څمونږ الله هغه لعنت برکت
٣ وگرزاوه ٣ او داسي وشوه چه دوي هغه توریت واوریده
نو ټول ور سره گډ شوي له بني اسرائیل ئې جدا کړه
٤ ٤ او وړاندي له دي نه الیاشیب هغه کاهن چه څمونږ د الله
د کور په خوني وړدولي شوي وه له طوبیاه سره ئې خویشي
٥ وه ٥ او ده دهغه د پاره یوه لویه خونه بسازه کړي وه او
هلته وړاندي به ئې د نذر قرباني او خوشبوئي او کالي د
لوبني او د غلي عشر او شیره او تیل به ئې کیښودل چه د لاویانو
او د سرودگرانو او د دربانانو او د کوهینانو پورته کړي قرباني
٦ فرضي مقرري وو ٦ او په دغو ټولو (وقتونو) کښې زه په اورشلیم

کښې نه وم ځکه چه په دوه دیرشم کال د ارتحششتا بادشاه
د بابل زه بادشاه ته ورغلم او پس له څو ورځو م له بادشاه
٧ رخصت واخست ٧ او اورشلیم ته ورغلم او په هغه شرارت
فهمدار شوم چه الیاشیب د طوبیاه د پاره کړي وه چه ده
٨ د الله د کور په غولیو کښې خونه ورته جوړه کړي وه ٨ او
ما ته ډیر بد ښکاریده او د طوبیاه د کور ټول کالي م له خونې
٩ د باندې ورغورزول ٩ او ما امر وکړ او دوي هغه خونې
پاکې کړې او د بیت الله کالي او د نذر قرباني او بخور بیرته
١٠ ور وړل ١٠ او زه پوه شوم چه د لاویانو برخې ورکړې شوې
نه دي بلکه هغه لاویان او سرودګران چه کارداران وو هر
١١ سړی خپل پټي ته تښتیدلي وه ١١ نو ما له حاکمانو سره دعوې
وکړه وم ویل چه ولې بیت الله ترک کړي شوی دی ؟ او
هغوی م ټول کړل او په خپلو خپلو دریدنې کښې و م ودرول
١٢ ١٢ او ټول یهوداه د غلې او د شیرو او د تیلو عشر په خزانو
١٣ کښې داخل کړل ١٣ او ما شلمیاه هغه کوهین او صادوق
هغه کاتب او فدایاه له لاویانو په خزانو باندې خزانچیان
مقرر کړل او د دوي په څنګ کښې حانان بن زکور بن
متنیاه ځکه چه دوي امانتداران ګڼلي شوي وو او په
١٤ دغو دا وه چه په خپلو ورونړو ویش وکړي ١٤ او ته م
په یاد کړه اې الله په دغه باندې او ته تقوې م چه ما
د خپل بیت الله او د ده د ساتنې د پاره کړي دي مه محوه
کوه
١٥ ١٥ په دغو ورځو کښې م په یهوداه کښې څنې ولیدل چه
په سبت کښې به ئې چرخشتونه مږل او ګیډې به ئې
راوړل او خرونه به ئې لېښل او و اورشلیم ته ئې د سبت

په ورځ شیره او انګور او انځیر او هرڅه چه به باریدل
راوړل او هغه ورځ چه دوی طعامونه خرڅول نو عداوت
۱۶ م پرِ وکړه ۱۶ او هغه صوریان چه په کښې اوسیدل قبلان
او هر قسم د خرڅ رختونه به ئې راوړل او په سبّت کښې
۱۷ به ئې په اورشلیم کښې خرڅول ۱۷ نو ما د یهوداه د امیرانو
سره دعویٰ وکړه ورته م وویل چه دا څه بدې خبرې دي
۱۸ چه تاسي ئې کوئ او د سبت ورځ بلماز کوئ ۱۸ کنه ستاسي
پلرونه داسي نه کول څه؟ او څمونږ الله به دوی باندي او په
دي ښهر دا ټول آفت را نه وست څه؟ او تاسي به
۱۹ اسرائیل باندي غضب زیاتوئ چه سبت بلماز کوئ ۱۹ او
داسي وشول چه د سبّت وړاندي چه د اورشلیم دروازي
به سپاري تیارهٔ کیدلي نو ما به امر وکړ چه دروازي دِ بندِ
کړي شي او وم ویل چه څو چه سبّت په آخر نه وي نه
دِ پرانتلي کیږي او ما په دروازو باندي خپل ځوانان ودرول
دي د پاره چه د سبّت په ورځ هیڅ بار د ننه راوړي
۲۰ نه شي ۲۰ نو سوداګرانو او ټولو چه رختونه خرڅ کاوه
۲۱ یو دوه واره د اورشلیم د باندي شپه تیره کړل ۲۱ او
ما به دوی سره عداوت کړ او ورته م وویل چه ولي تاسي
د دیوال په څنګ کښې شپې تیروئ که تاسي بیا داسي
وکړئ نو زه به لاس در باندِ واچوم او له دغه وقت بیا به
۲۲ سبّت کښې نه راتلل ۲۲ او ما لاویانو ته امر وکړ چه پاکي
وکړئ او راشئ او د سبّت ورځ د تقدیس د پاره د دروازو
ساتنه کوئ په دي هم ما په یاد کړه ای څما الله او د خپل
ډیر مهربانئ په موافق شفقت را باندي وکړه ⁂
۲۳ ۲۳ او په هم دغو ورځو کښې م څني یهودیان ولیدل چه

اشدودي

۲۴ اشدودي او عموني او موابي ښځې ئې او سولې وې ۲۴ او د
دوی د زامنو نیمي په اشدودي ژبې وې او په یهودي ژبه
به ئې ښې خبرې کولې نه شوې بلکه د نورو نورو خلقو په
۲۵ ژبې کښې ۲۵ نو ما له هغو سره دعوې وکړه او لعنت مې پرې
وکړ او ورنه مې څو کسان ووهل او ویښته مې ئې وباسل او
په الله مې قسم ترې واخست ویل مې چه تاسې به خپلې لوڼې
د دوی زمنو ته نه ورکوئې او نه به د هغو لوڼې د خپلو
۲۶ زامنو د پاره او نه د خپلو ځانونو د پاره اخلئ ۲۶ کنړه د دغو
د پاره سلیمان بادشاه د اسرائیل خطا و نه کړه څه؟ او
په ډېر قومونو کښې د ده په شان بادشاه نه وه او د خپل
الله محبوب وه او دې الله په ټول اسرائیل بادشاه مقرر کړ
۲۷ ده هم هغې بېګانې ښځې خطا کار کاوه ۲۷ او اوس مونږ
څرنګ به تاسې اورو چه دا ټول لوی شرارت وکړو چه په الله
خپل خیانت وکړو د پردو ښځو په اوسولو سره ځمونږ د الله
۲۸ په مخالفت ۲۸ او یو له زامنو د یویاداع بن الیاشیب لوی
کوهین زوم د سنبلط هغه هوروني وه نو هغه مې له خپل
۲۹ ځانه تښتاوه ۲۹ اې ځما الله ته دوی په یادګارې کړه ځکه
چه دوی هغه کوهینت پلیت کړ او د کوهینکلوي د لاویانو
۳۰ عهد ۳۰ او ما دوی له ټولو بېګانو پاک کړل او له کوهینانو
او له لاویانو مې هر یو سړی د ده په کار بندي په ساتنې
۳۱ کولو مقرر کړ ۳۱ او د لرګو د قرباني د پاره په مقررو وختونو
کښې او د اولو میوو د پاره اې ځما الله ته مې په ښېګړې
یاد کړه

تمام شه

# د آستر کِتاب

## اوّل باب

١ آ او د احسویروش په ورځو کښې داسې وشول. دا هغه
احشویروش دی چه له هند ئې ترکوش پورې په یوسل
٢ اوه ویشتو صوبو باندې بادشاهي وکړه ٢ چه په دغو ورځو کښې
چه احشویروش بادشاه د خپلې بادشاهي په تخت چه په
٣ شوشن بیره کښې وه کښیناست ٣ نو د خپلې بادشاهي په
دریم کال ئې خپلو ټولو سردارانو او نوکرانو میلمستیا
وکړه د لښکرو د فارس او د مادي او دده د وړاندې د صوبو
٤ پیرپُردان او سرداران وو ٤ نو ده تر ډیرو ورځو بلکه تر
یوسل اتیا ورځو پورې هغه ته د خپلې لویې بادشاهي دولت
٥ او د خپل ګران بها لويي رونق ور ښکاره کړه ٥ او چه دا ورځې
پورې شوې نو بادشاه د هغو ټولو خلقو د پاره چه په شوشن
بیرې کښې وموندلې شول که لوی وو که واړه وو د بادشاه
د محل د جنت په غولي کښې اووه ورځې میلمستیا
٦ وکړه ٦ سپینې او آسماني کرباسي پردې نیولې شوې د کتانو او
د ارغواني په پړبو د سپینو زرو په کړو او ستنې د سنګ
مرمر کټونو د سرو او د سپینو زرو په رصفو سنګ فرشو
د بهوت او سپین مرمر او د رُوکانړو او د داغي مرمر
٧ ٧ او د څښلو سقاو لوښي د سرو زرو او لوښي رنګ رنګ بیلې
بیلې وو او شاهانه شراب د ستِ شاه په شان په کثرت
٨ سره وو ٨ او څښناک د داد په موافق وه جبرَ نه وو
ځکه چه بادشاه د خپل کور په ټولو ریانو باندِ مقرر کړي

۹ وه چه سیري اسمي داسي دِ کړي لکه چه رښائي وي ۹ او
وشتي شاهزادئي هم د ښځو د پاره د بادشاه په کور کښې
چه د احشویروش بادشاه وه میلمستیا کړي وه
۱۰ ۱۰ او په اومه ورځ چه د بادشاه زړه په شرابو خوشحال
شه نو مهومان بزتا حربونا بګتا او ابګتا زتار اوکرکس
لره چه هغه اوو خوجګانو وو چه د احشویروش بادشاه
۱۱ په حضورئي خدمت کاوه امر وکړ ۱۱ چه وشتي ملکه ته
شاهي تاج ور په سر کړي د بادشاه و حضور ته ئي راولئي
چه د دي ښایست خلقو او سردارانو ته ور ښکاره کړي شي
۱۲ ولي چه دا په لیدو ښه وه ۱۲ او وشتي ملکي انکار وکړ چه
د حکم د بادشاه په ویلو چه د خوجګانو په لاس ور ته شوي
وو ورشي نو بادشاه ډیر په قهر شه او غضب ئي په کښې بلیده
۱۳ ۱۳ او بادشاه هغو دانایانو ته چه په وقتونو پوهیدل وویل
څکه چه د بادشاه کار د هغو ټولو ته د وړاندِ چه په داد او په
۱۴ دین پوهیدل داسي وه ۱۴ او د ده مقربان کرشنا شیتار ادماتا
ترسیس مرس مرسنا مموکان وو دغه اوه سرداران د
فارس او د مادي وو چه د بادشاه مخ به ئي لید او په بادشاهي
۱۵ کښې اوّل کښینا ستونکي وو ۱۵ چه د داد په موافق دِ له وشتي
ملکي سره څه وکړي شي څکه چه دي د بادشاه احشویروش
۱۶ د امر په موافق په لاس د خوجګانو عمل و نه کړ؟ ۱۶ او مموکان
د بادشاه او سردارانو د وړاندي وویل چه وشتي ملکي
نه تش په بادشاه باندِ بد کړي دي بلکه په ټول سردارانو
او په ټولو خلقو باندِ چه د بادشاه احشویروش په ټولو
۱۷ صوبو کښې دي ۱۷ څکه چه زر به دا خبره د ملکي په ټولو
ښځو باندِ ور ووزي چه احشویروش بادشاه امر وکړ چه

وشتي

وستي هغه ملکه دِ د ده دوراندي راوستله شي او دا نه ورغله
نو به خپل میرونه په خپلو سترګو کښی بوزي بنده وکړي
۱۸ ۱۸ اونن ورځ تولي ببیاني د فارس او د مادي چه د ملکي
خبره واوري تولو سردارانو د بادشاه ته به داسي ووایي او
۱۹ داسي شان خبره سپکاوي او بیزاري ده ۱۹ نو که د بادشاه په
نزد ښه ښکاریږي نو شاهانه فرمان دِ ستا له نزد صادر شي
او هغه دِ د فارس او د مادي په داد کښی ولیکلي شي چه
نه تغیر کیږي چه وشتي ملکه دِ بیا د بادشاه اخشویروش
په حضور نه راځي او بادشاه دِ د دي مملوکت بوي سهیلي ته
۲۰ چه له دي ښه وي ورکړي ۲۰ او چه د بادشاه پیغام چه دي
به عمل کوي په تولو بادشاهي کښی ئې واورولي شي (ځکه چه
دغه لویه ده) نو به تولي ښځي خپلو میرونو ته ګرانتیا ورکوي
۲۱ له لوي نه تر وړوکي پوري ۲۱ او دا خبره د بادشاه او د ده
سردارانو په سترګو کښی ښه ښکاریده او بادشا د مموکان
۲۲ د ویلو په شان وکړل ۲۲ او تولو صوبو د بادشاه ته ئې خطونه
واستول هري صوبي ته د هغو صوبو د لیکلو په شان او قوم
ا قوم د هغو د ژبي په شان چه هر سړي دِ په خپل کور
سرداري کړي او د خپل قوم د ژبي په موافق خبري وکړي

## دویم باب

۱ آبس له دي خبرو چه د احسویروش بادشاه غضب
په سکونت شه نو ده وستي او هغه څه چه دی کړی
۲ وو او چه ده د هغي په باب فرمایلي وه په یاد کړل ۲ نو د
بادشاه نرانو چه د ده خدمت ئې کاوه و ئې ویل چه د بادش
۳ د یاره دِ ښاښته ځواني پیغلي ولټولي شي ۳ او بادشاه دِ

د خپلي

د خپلې بادشاهۍ په ټول صوبو کښې بازخواستان ودروي
تاچه دوي ټولې ښايسته ځواني پيغلې شوشن بيره د بادشاه
د ښځو کور ته د هيجاي د بادشاه خوجه ولاس ته چه د ښځو
ساتونکې دې ورجمع کړي او هغو ته دِ د پاکي کولو څيزونه
۴ ورکړي شي ٤ او هغه ځوانه چه د بادشاه په سترګو کښې
خوښه شي هغه دي د وشتي په ځاي ملکه شي او دا خبره
د بادشاه په سترګو کښې خوښه شوه او داسې يې وکړل
۵ ٥ په هغه شوشن بيره کښې يو يهودي سړې وه مردکي
نوم يې ابن ياِئيرا ابن شمعي ابنِ قيس يميني سړي وه
۶ ٦ چه له اورسليم نه له هغو جلاوطني والو سره جلاوطن کړي
شوي وه چه له يکنياه بادشاه د يهوداه سره جلاوطن کړي
۷ شه چه نبوکدناځر بادشاه د بابل جلاوطن کړي وو ٧ او دي
د هداسه يعني د آستر ترلي خپلې امانتداروه ځکه چه
ورلره نه پلار نه مور وو ؛ او دغه ځوانه ښايسته جسه او
ښايښته ليدنه وه او چه د دي پلار او مور مړشول نو مردکي
۸ د ځان د پاره د لور د پاره ونيوه ٨ او چه د بادشاه حکم او
داد واورولي شول او ډيرې ځوانې شوشن بيره ته د هيجاي
لاس ته ورجمع کړي شوي نو آستر هم د بادشاه کور ته
۹ د هيجاي ساتونکي لاس ته اخستله شوه ٩ او دغه ځوانه د ده
په سترګو کښې ښه ښکاريده او د ده د وړاندِ يې نعمت وموند
او ده په تلوار سره د پاکولو څيزونه او د هغه برخه ورکړل سره
له هغو اوو ځواني چه دي ته د بادشاه له کوره د ورکولو
لايقې وې او دا يې له خپلو ځوانيو سره د ښځو د کور ښه
۱۰ مکان ته ور بدل کوله ١٠ آستر خپل قوم او خپل ذات ځرګند
نه کړ ځکه چه مردکي دي ته حکم وکړ چه مه يې ځرګند وه

۱۱ ۱۱ او مردکي به هره ورځ د ښځو د کور د غولي د وړاندې ګرځېده تا
چه د آستر سلامتي معلومه کړي او چه په دي به څه کیږي شي
۱۲ ۱۲ او چه د هري یوي ځوانۍ جنۍ وار به رسیده چه احشویروش
بادشاه ته ځواني ورشي پس له هغه چه دوولس میاشتي ئې تیري
شي لکه چه د ښځو دادوه ځکه چه داسي د پاکي کولو ورځي
پوري شوي یعني شپږ میاشتي د مرو په تیلو او شپږ میاشتي
۱۳ په خوشبویو بلساني د ښځو د پاکي کولو څیزونو سره ۱۳ او په دي
به هره ځوانۍ بادشاه ته ننه راتلي او هر څه چه دې به د هغه
په باب ویل چه د ښځو له کوره ئې تر بادشاه وکور ته ور سره یوسي
۱۴ هغه به ورکولي شه ۱۴ ماښام به ورتله او په صباح به
را وجارتله دویم کور د ښځو ته شعشغز خوجه د بادشاه ساتونکي
د سریتو ولاس لره او هغه به بیا بادشاه ته نه ورتله مګر
چه بادشاه به په کښې خوشحال شه او چه په نامۀ سره به ئې
۱۵ وبلله ۱۵ او چه بادشاه ته د ورننوتلو وار د آستر لور د ابیحایل
تره د مردکي چه ده د لور د پاره نیولي وه لګیا شه نو دې هیڅ
څیز نه وغوښت بې له هغه چه هیجاي خوجه ساتونکي د
ښځو د دي د پاره امر کاوه ۰ او آستر د هر چا په سترګو کښې
۱۶ چه وي لیدله به نعمت نیوله ۱۶ او آستر د احشویروش
بادشاه د بادشاهي کور ته په لسمې میاشتي چه طیبت
۱۷ میاشت ده د ده د بادشاهي په اووم کال ورسیده ۱۷ او
بادشاه په آستر باندې له ټولو ښځو زیاته مینه وکړه او دده
د وړاندې ئې له ټولو پیغلو ډیر نعمت او احسان ونیوه
او د شاهي تاج ئې د دي په سر کیښود او د وشتي په ځاي
۱۸ ئې ملکه کړه ۱۸ او بادشاه ټولو سردارانو او نوکرانو خپلو ته
لویه میلمستیا جوړه کړه یعني د آستر د میلمستیا او صوبو

ته يې راحت ورکړ او دستِ شاه په موافق يې مسئ انعامونه ورکړل
۱۹ او چه دويم وار پيغلي جمع شوي نو مردکي د بادشاه په دروازي
۲۰ کښې ناست وه ۲۰ او آستر خپل ذات او خپل قوم څرګند کړي نه
وه لکه چه مردکي ورته ويلي وه او آستر به د مردکي د امر په
موافق کار کاوه لکه چه دغه په وقت چه د ده په امانت کښې وروزله
۲۱ وه ۲۱ په دغو ورځو کښې چه مردکي د بادشاه په دروازي کښې ناست
وه نو بغتان او ترش دوه خواجګانو د بادشاه ساتونکيو د استانې
۲۲ وغوښتل چه اخشويروش بادشاه ته لاس ونه اوږده کړي ۲۲ او
دا کار مردکي ته معلوم شه نو ده آستر ملکه خبره کړه او آستر
بادشاه خبر کړ د مردکي په نوم کښې او چه د دي خبري تحقيقات
وکړي شه او داسي و ښندلي شوه نو دواړه يې په وني باندِ په
سولئ کړل او دغه د بادشاهانو د روزنامو په کتاب کښې د بادشاه
د وړاندي وليکلي شول ٭

# دريم باب

۱ آ پس له دي کارونو اخشويروش بادشاه هامان بن همداتا
اجاجي غټ کړ او سرفراز يې کړ او د ده کرسي يې له هغو ټولو
۲ سردارانو چه ورسره وو پاس کيښوده له ۲ او ټول نوکران د بادشاه
چه د بادشاه په دروازي کښې وو هامان ته رکوع رکعات او سجده
به يې ورته کوله ځکه چه بادشاه د ده په باب داسي حکم کړي
۳ وه ۰ مګر مردکي به رکعت نه کړ او نه به يې سجده کوله ۳ نو د
بادشاه نوکرانو چه د بادشاه په دروازي وو مردکي ته وويل
۴ چه ته ولي د بادشاه له حکمه عبور کوي ۴ او چه دوي به هره
ته ورځ او ورځ دا خبره کوله او ده به د هغو نه اوريدل نو يې هامان
څرګند اوکړه چه دوي ووينې چه د مردکي خبره ودريږي که نه

ځکه چه ده هغو ته څرګند اوه چه زه يهودي يم ۵ او چه ۵
هامان وليد چه مردکي ورته نه رکعت او نه سجده کوي نو هامان
له غضب دک شه ۶ او ده په سترګو کښ بوزي بنده ۶
وګانړه چه يواځي مردکي ته لاس واچوي ځکه چه هغوي
دي د مردکي په قوم څرګند اوه نو هامان وغوښتل چه هغه
ټول يهوديان چه د احشويروش په بادشاهي کښ دي
د مردکي قوم دي ۷ په اولي مياستي يعني په نيسان مياشتي ۷
په دوولسم کال د احشويروش بادشاه هغوي په فور يعني
ګټي پچي د هامان د وړاندي ورځ اورځ او مياشت امياشت
تر دوولسمي پوري چه د ادار مياست دي اچاولي ۸ نو هامان ۸
احشويروش بادشاه ته وويل چه ستا د ټولي بادشاهي په
صوبو کښ د قومونو په مينځ کښ پسورويي او تفرد يو قوم
شته دي او د دغو داد له ټولو قومونو بيل دي او دوي د
بادشاه دادونه عمل کونکي نه دي نو بادشاه ته د دوي
په قرار پريښودل مناسب نه دي ۹ نو که په بادشاه باندي ۹
ښه ښکاريږي نو د دغو د برباد کولو حکم دِ وليکي او زه به د
کاردارانو په لاسونو لس زره قنصار د سپينو زرو ټول کړم
چه د بادشاه په ګنج کښ داخلي کړي شي ۱۰ نو بادشاه خپله ۱۰
غمي ګوتيه له خپل لاس نه لري کړ او هامان بن همداثا هغه
اجاجي ته چه د يهودو دښمن وه ورئ کړله ۱۱ او بادشاه ۱۱
هامان ته وويل چه سپين زر دِ تا ته درکړي شول او هغه
قوم هم چه لکه چه ستا په سترګو کښ ښه ښه ښکاريږي
هغه پري وکړه ۱۲ او د بادشاه ليکونکي د اوّلي مياشتي په ۱۲
ديارلسمي ورځي وبللي شول او د هرڅه په موافق چه هامان
وفرمايل د بادشاه اخش ستربانو پيشواو ته چه په هري

صوبي باندِ وي او د هر قوم د صوبي قوم اقوم سردارانو ته د
هغو د ليكاو په شان وليكلي شول او قوم اقوم ته لكه چه د
هغو ژبه وه د احشويروش بادشاه په نوم وليكلي شول او د
۱۳ بادشاه په گوتيه مهر كړي شه ۱۳ او دغه خطونه د قاصدانو
په لاس د بادشاه وتولو صوبو ته واستولي شول چه د آدار د
مياشتي په ديارلسم تاريخ تول يهوديان هلاك كول او ووژلل او
برباد كول له ځوانو تر كرځي بوري ترپيدونكي تيه او ښځي په هم هغي
۱۴ يوي ورځي كښي او شوك ئې د لوټ د پاره واخله ۱۴ د هغه خط
نقل په تولو صوبو كښي اصوبو كښي د داد وركولو د پاره شه او تولو
خلقو ته ځرگنده شه چه د دي ورځي د پاره چست طيار وي
۱۵ ۱۵ او قاصدان ووتل بيړه شړلي شوي د بادشاه په خبر سره او
په شوشن بيره كښي هغه داد وكړي شه او بادشاه او هامان
د څښلو د پاره كښيناستل ليكن د شوشن په ښهر كښي
باک وه

## څلورم باب

۱ ۱ او چه مردكي په هغه تول چه عمل كړي شه پوهيده نو
خپلي جامي ئې څيري كړي او شيرۍ او ايري ئې واغوستلي او
د ښهر مينځ ته وووت او په لويي او ترخي ژوړۍ ئې وغوړغاوه
۲ ۲ او د بادشاه تر دروازي د وراندي راغي ځكه چه هيڅوک به د
۳ بادشاه كورته نه ننه ووت چه شيرۍ به ئې اغوستلي وه ۳ او
په تولو صوبي اصوبي هرچرته چه د بادشاه فرمان او داد ورسيده
په يهوديانو لوي وير لگيا شه او روژه او ژړا او وهل شول او ډيرو
۴ شيرۍ او ايري وغوړولي ۴ نو د آستر ځواني او خوجگان ور
غلل او دا ئې ځرگند اوه نو ملكه ډيره پيچ وتاب خانه شوه
او مردكي ته ئې د اغوندولو د پاره جامي ور واستولي او چه شيرۍ

۵ ور باندِ نه وکاږي او ده قبول نه کړل ۵ نو آستر هتک چه يو
له خوجګانو د بادشاه ٠ چه د دي د وړاندي ئې ودرولي وه
و باله او په مردکي باندِ ئې حکم ورکړ چه دا پوه شي چه دا
۶ څه دي او په څه باندِ دي ۶ نو هتاک مردکي ته وروووت
د ښهر په هغه چوک کښ چه د بادشاه د دروازي د وړاندِ
۷ وه ۷ نو مردکي هر هغه څه چه ورته پيښ شه هغه ته ښرګنداوه
او ټخت هغه نقل چه هامان د يهودو د بربادولو د پاره په
۸ ګنجونو باندِ د ټول کولو امر کړي وه ۸ او هغه نقل د هغه
فرمان ئې هم ورکړ چه د دوي د هلاکولود پاره ئې په سوس
کښ ورکړي وه چه آستر ته ئې ور ښکاره کړي او ښرګنده
ئې کړي او چه ور باندِ تاکيد وکړي چه بادشاه ته دِ ننه ووزي
او زاري د زړه سوي ورته وکړه او ورنه په خپل قوم باندِ د ده
۹ د وړاندِ سوال غواړي ۹ نو هتاک راغي او آستر ته ئې د مردکي په
۱۰ خبرو ښرګنداوه ۱۰ نو آستر هاتک ته وويل او حکم ئې مردکي ته
۱۱ ورکړ ۱۱ چه ټول سړيونه د بادشاه او د بادشاه د صوبو قومونو
پوهيږي چه هر سړي يا ښځه چه بي له بللو اندروني غولي د
بادشاه ته ورشي نو د هغه د سړ کولو يو داد دئ بي له هغه
چه بادشاه امسا زرين ور اوږده کړي نو هغه به ژوندي پاتي
شي او زه په دغو ديرشو ورځو کښ بادشاه ته د وروننه وتلو
۱۲ د پاره بللي شوي نه يم ۱۲ او هغو مردکي د آستر په خبرو ښرګنداوه
۱۳ ۱۳ نو مردکي وويل چه آستر دِ ځواب ورکړي شي چه ته خپل
ځان سره مثال مه کوه چه له ټولو يهوديانونه به زه د
۱۴ بادشاه په کور کښ خلاص شم ۱۴ ځکه چه که ته په دي
وقت کښ ټپ ګنګي سره ګنګ اوسي نو يهودو د پاره به
فراخي او خلاصي له بله ځايه ودريږي او ته او ستا د پلار کورنه

بر بادشي او څوک پوهيږي چه ته د داسي زماني د پاره
١۵ بادشاهي ته را رسيدلي يي ١۵ نو آستر ووئيل چه مردکي ته دِ
١٦ خواب ورکړي شي ١٦ چه ته لاړ شه او هغه ټول يهوديان
چه په شوشن کښي مندل کيږي را جمع کړه او ځما د پاره روژه
ونيسئ او دري ورځي او شپي مه خورئ او مه څښئ او زه
او ځما ځوانياني به هم داسي روژه ونيسو او په دي شان سره
به بادشاه ته ور ننه شم چه د داد به موافق نه دي نو که برباد
١٧ شوم نو بر باده شولم ١٧ نو مردکي لاړ او د آستر د حکم به موافق
ئي هر څه وکړل ⁂

# پنځم باب

١ ١ او په دريمه ورځ داسي وشوه چه آستر ملکي جامي
واغوستي او د بادشاه د کور به اندروني غولي کښي ودريدله
چه د بادشاه و کور ته مخامخ دئ ودريده او بادشاه د خپلي
بادشاهي په کور کښي په تخت باندي مخامخ د مدخل د هغه
٢ کور ناست وه ٢ نو چه بادشاه آستر ملکه په غولي کښي ولاړه
وليدله نو د هغه په سترګو کښي نعمت برداره شوله نو بادشاه
آستر ته اساء زرين چه د هغه په لاس کښي وه وراوږده کړه
٣ نو آستر ور نژدي شوه او اسا ئي لاس ولګاوه ٣ او بادشاه
ور ته ووئيل چه اي آستر ملکه ستا د پاره څه دي او څه
لټونه ده اګرکه ترنيمي بادشاهي وي تا ته به درکړي شي
۴ ۴ نو آستر ووئيل چه که په بادشاه باندي ښه وي نو نن ورځ
دِ بادشاه او هامان ځما ميلمستيا ته چه ورته م جوړه کړي
۵ ده را شي ۵ او بادشاه ووئيل چه په هامان بيړه وکړئ چه
د آستر د خبري به موافق دِ کار کړي شي نو بادشاه او

هامان هغې ميلمستيا ته چه استر ورته کړې وه ورغلل
٦ او بادشاه د مَيْ ميلمستيا په وقت آستر ته وويل چه ٦
ستا څه سوال دئ او ور به دِ کړې شي او ستا څه لټونه
ده نو هغه به تا ته درکړې شي تر نيمې بادشاهي پورې ٧ نو ٧
آستر وويل چه څما سوال او څما لټونه دغه ده ٨ چه که ٨
ما د بادشاه په سترګو کښې نعمت موندلې دي او که په
بادشاه باندې ښه وي چه څما سوال را کړې شي او څما
لټونه به عمل کړې شي نو بادشاه او هامان دِ هغې
ميلمستيا ته چه زه ئې ورته جوړه کړم راشي او صبا به
زه د بادشاه د حکم په موافق وکړم ٩ او هامان په دغې ٩
ورځې خوشحال او خوشدله ووت ليکن چه هامان
مردکي د بادشاه په دروازې کښې ناست وليد چه پورته
نه وه او ورته و نه خوځيده نو هامان په مردکي باندِ له
غضب ډک شه ١٠ او هامان ځان خپل تينګ ونيوه او ١٠
خپل کور ته ورغې او خبرې واستاوه او خپل دوستان او
خپله ښځه زرش ئې حاضر کړل ١١ او هامان د خپل دولت ١١
عذت او د خپلو زامنو کثرت او هغه چه بادشاه ده ته لوئي
ورکړه او چه د بادشاه په نورو سردارانو او نوکرانو باندِ ئې سرفراز کړ
١٢ او هامان داهم ووې چه آستر ملکې هغې ميلمستيا ته ١٢
چه دې کړې ده بې له مانه له بادشاه سره هيڅوک نه
ورننه ايستل او صباهم له بادشاه سره څما دعوت دي
١٣ او دغه ټول څما په نزد له هيڅ څيز سره برابر نه دي هر ١٣
هغه وقت چه زه مردکي هغه يهودې د بادشاه په دروازې
کښې ناست وينم ١٤ نو د ده ښځې زرش او د ده دوستانو ١٤
ورته وويل چه يو لرګي چه پنځوس هاتې لوړ وي جوړ دِ

کړي شي او په صباح بادشاه ته ووايه چه مردکي دِ په
ده باندِ سولئ کړي شي بيا خوشحال له بادشاه سره ميلمستيا
ته ورننه وزه: او دا خبره د هامان د وړاندي ښه ښکاريده
او هغه لرګي يئ جوړ کړ ٭

# شپږم باب

١ آ په دغي شپي د بادشاه خوب نتلي والووت نو ده حکم
وکړ چه د روز نامي د يادګاري کتاب دِ راوړي شي او هغه
٢ د بادشاه د وړاندي ولوستلي شه ٢ او په هغه کښِ دا ليکلي
وموندلي شول چه مردکي په بغثانا او ترش باندِ دوو
خوجګانو د بادشاه چه نګهبانان د استاني وو څرګند کاوه
چه دوي لټنه کاوه چه په بادشاه احشويروش لاس ونه
٣ آچوي ٣ نو بادشاه وويل چه په دي باندِ مردکي لره کوم
وقار او لويي ورکړي شول نو نوکرانو د بادشاه چه د ده خدمت
٤ يئ کاوه وويل چه د ده سره هيڅ عمل شوي نه دي ٤ او بادشاه
وويل چه په بارګاه کښِ څوک شته دي؟ او هامان د بادشاه
د کور بيروني غولي ته رسيدلي وه چه بادشاه ته وايي چه
مردکي به هغي وني باندِ چه د ده د پاره يئ تيار کړي وه په
٥ سولئ دِ کړي ٥ نو د بادشاه نوکرانو ورته وويل ګوره هامان
په درګاه کښِ ولاړ دي: او بادشاه وويل چه دننه دِ راشي
٦ ٦ او هامان ورننه ووت او بادشاه ورته وويل چه له هغه
سړي سره چه بادشاه د ده په کار کښِ خوشحال وي څه عمل
کړي شي نو هامان په خپل زړه کښِ وويل چه بادشاه بي له
ما نه به له چا سره د وقار زياتيتوب په عمل کولو خوشحاله وي
٧ ٧ نو هامان بادشاه ته وويل هغه سړي لره چه بادشاه ده

٨ به وقار کښې خوشحال دئ نو بادشاهي لباس چه بادشاه په کښې
به ملبس کیږي او هغه آس چه بادشاه پرې باندِ سواریږي او چه
٩ د ده په سر بادشاهي تاج کیښودلی کیږي را دِ وړي شي ٩ او هغه
لباس او هغه آس دِ د بادشاه د سردارانو سړي په لاس باندِ
چه پیرپردان وي ورکړي شي او هغه سړي ته دِ ور واغوندوي
چه بادشاه دده په وقار کولو خوښوي او د ښهر په چوکونو کښې
دِ یې هغه آس باندِ سور کړي او دده په وړاندې دِ منادي کوي
چه هغه سړي ته چه بادشاه دده په وقار خوشحال دئ لکه
١٠ داسي به ورسره وکړي شي ١٠ نو بادشاه هامان ته وویل چه زر
کړه هغه لباس او هغه آس واخله او لکه چه تا خبره وکړه له
مردکي یهودي سره چه د بادشاه په دروازې کښې ناست دي
داسي وکړه . او له دغو ټولو چه تا خبر کړي دي هیڅ دِ پرِ نه وږدې
١١ ١١ نو هامان هغه لباس او هغه آس واخستل او مردکي ئې
ملبس کړ او د ښهر په چوکونو کښې ئې سور کړ او دده په
وړاندې ئې منادي وکړه چه کوم سړي ته چه بادشاه دده
١٢ په وقار خوشیږي لکه داسي به ورسره وکړي شي ١٢ او مردکي
د بادشاه ودروازې ته وجار ووت او هامان ویروال او پټ سر
١٣ په تلوار سره وخپل کور ته لاړ ١٣ او هامان خپلي ښځې زرش
او خپلو ټولو دوستانو ته د هرڅه چه ده ته پیښ شه قصه
تیره کړه نو ده ته د ده دانایانو او دده ښځي زرش وویل چه
که دغه مردکي چه ته اوس دده د وړاندې په لویدلو سر
شوي د یهودیانو له تخمه وي نو ته به پرې برکیدلی نه شي
١٤ بلکه دهغه د وړاندې به په لویدلو ولویږي ١٤ او چه دوي
ورسره لا خبري کولي د بادشاه خوجګان ورسیدل او بیړه
وکړه چه هامان وهغي میلمستیا ته چه آستر جوړ کړي وه
بوزي

# اووم باب

۱ ۱ او بادشاه او هامان ورغلل چه آستر ملکه څخه وڅښي
۲ ۲ نو بادشاه آستر ته په دویمه ورځ د شرابو د څښلو په وقت
هم وویل چه ته څه سوال لري اي آستر ملکي هغه به تا ته
درکړې شي او ستا څه لټونه ده چه هغه تا ته عمل کړې شي
۳ تر نیمې بادشاهي پورې ۳ او آستر ملکه ځواب ورکړو وې وویل
چه که ستا په سترګو کښ نعمت منده یم اي بادشاه او که
په بادشاه باندې ښیګړې وي نو ځما په سوال د ځان ځما راکړې
۴ شي او ځما په لټوني سره ځما امّت ۴ ځکه چه مونږ خرڅ کړې
شوي یو زه او ځما امّت د هلاکت د قتل او د نابود کولو د پاره
او که مونږ په مریانو او په وینځو خرڅ شوي وي نو زه به پټه
خوله وم اګرکه هغه ضرر د بادشاه نقصان سره نه برابریدل
۵ ۵ نو احشویروش بادشاه امر وکړ او آستر ملکي ته ئې وویل
هغه څوک او چیرته دې چه ځپل زړه ئې د داسي کولو د پاره
۶ داکوي ۶ نو آستر وویل چه هغه ضرر رسان او دښمن هم
دغه بد هامان دی نو هامان د بادشاه او د ملکي د وړاندې
۷ دهشت وخور ۷ او بادشاه د شرابو له څښلو په ځپل غضب
پورته شه او جنت محل ته لاړ او هامان ودریده چه د ځپل
ځان د پاره آستر ملکي ته التماس وکړې ځکه چه ده ولید چه
۸ د بادشاه له طرف نه په ده باندې افت طیار شوي دی ۸ او چه
بادشاه جنت المحل د شرابو نویشتلو کورته ورجاروت
او هامان په هغه پلنګ باندې پروت وه چه آستر ور باندې وه
بادشا وویل چه دغه هم ځما څخه په کور کښ هم د ملکي
دربل کوي څه؟ لا خبره د بادشاه له خولي وتله نو د هامان

۹ مخ ئې پټ کړه ۹ او حربونا يو له هغو خوجګانو چه د بادشاه
د وړاندِ به وو وويل چه ګوره هغه لرګي هم چه هامان د
مردکي د پاره جوړ کړي دي چه په بادشاه باندِ ئې ښېګړه خبره
وکړه د هامان په کور کښې ولاړ دي چه پنځوس هاتي اوچت
دي او بادشاه وويل چه هم په دغه باندِ ئې په سولئ کړئ
۱۰ ۱۰ نو هامان ئې په هغه لرګي په سولئ کړ چه د مردکي د پاره
ئې طيار کړي وه پس د بادشاه غضب ساکن شه *

## اتم باب

۱ ۱ په دغې ورځي کښې احشويروش بادشاه هم هغه کور د هامان
چه د يهوديانو دښمن وه آستر ملکې ته ورکړ او مردکي
د بادشاه و حضور ته ورغي ځکه چه آستر څرګند اوه چه
۲ هغه ماته هرڅه دی ۲ او بادشاه هغه غمي ګوتيا چه له
هامانه ئې را تيراوه لرې کړ او مردکي ته ئې ورکړ او آستر
۳ د هامان په کور باندِ مردکي ودراوه ۳ او آستر زيات کاوه
او د بادشاه په حضور ئې خبره وکړه او د هغه په پښو څخه
پرېوتله او وئې ژړل او ورته ئې زره سوي وغوښتله چه د
هامان هغه اجاجي شرارت او د ده حساب چه په
يهوديانو باندې ئې حساب کړي وه عبور دِ کړې شي
۴ ۴ نو بادشاه آستر له هغه اسساء زرين اوږده کړه نو
۵ آستر پاځېدله او د بادشاه د وړاندې ودرېدله ۵ او وئې
وويل چه که په بادشاه باندې ښه وي او که ما د هغه په
حضور کښې نعمت موندلي وي او چه دا کار د بادشاه
په نزد راست وي او زه د ده په سترګو کښې ښه يم نو
ودِ ليکلي شي چه هغه خطونه دِ وګرزولي شي چه

هامان بن هداثا هغه اجاجي په حساب کړ چه وئې لیکلي
وو د پاره د برباد کولو دهغو یهودیانو چه د بادشاه په ټولو
٦ صوبو کښې دي ٦ ځکه چه زه به څرنګ و توانیږم چه په هغه
بلا وونیم چه زما قوم ته رسیږي او څرنګ به و توانیږم چه
٧ د خپل جنس په بربادي وونیم ٧ نو احشویروش بادشاه
آستر ملکې ته او مردکي یهودي ته ووئیل ګوره ما دهامان
کور آستر ته ورکړ او دوي ئې په لرګي باندي په سولې کړي دي
٨ چه ده په یهودیانو لاس اوږد کړ ٨ نو اوس تاسي د بادشاه په
نوم یهودیانو ته هغه ولیکئ لکه چه ستاسو په سترګو کښې
ښه ښکاریږي او د بادشاه په غمي ګوتیا ئې مهر کړئ ځکه
چه هر څه خط چه د بادشاه په نوم ولیکلي شي او د ده غمي
٩ ګوتیا مهر کړي شي هغه نه ګرزیدلي کیږي ٩ نو په هغه وقت
خوش نویسان د بادشاه وبللي شول په دریمي میاشتي
یعني د سیوان د میاشتي ده په درویشتم تاریخ او په موافق
د هر هغه څه چه مردکي فرمایل یهودیانو او اخشدربانو
او پیشواوُ او دهغو صوبو سردارانو ته چه له هند تر کوش
پوري یو سل اووه ویشت صوبي دي صوبي اصوبي ته دهغي
په خط او قوم اقوم ته د هغه په ژبه او یهودیانو ته د دوي
١٠ په خط او د دوي په ژبي سره لیکلي شوي وو ١٠ او ده د
احشویروش بادشاه په نوم ولیکل او د بادشاه په غمي ګوتیا
ئې ختم کړ او هغه کاغذونه ئې د چپرونو په لاس روان کړل
١١ ١١ په دغو سره بادشاه یهودیانو ته اجازت ورکړ چه په هر
هر ښهر کښې چه وي سره ټول د شي او په خپلو ځانونو
باندي د ودریږي او دهغه قوم او دهغه صوبي فوځ چه د دوي
ضرر ورسوي هلاک او قتل او نابود د کړي ترپیدونکي

تیه

۱۲ تپه او بنځي او د دوي مال دِ لوټ کړي ۱۲ په يوي ورځي په
ټولو صوبو د اخشويرش بادشاه کښې په دیارلسم تاریخ د
۱۳ دوولسمي مياشتي هغه د ادار مياشت دَیَ ۱۳ د هغه خط
نقل چه په ټولو صوبوا صوبو کښې ذاد ورکړي شوي وه
ټولو قومونو ته ښکاره کړي شه چه یهودیان دِ په دغي
۱۴ ورځي چست طیاروي چه له دښمنانو انتقام واخلي ۱۴ نو
هغه چپران رکښي ګرندي کچرسواران وووت او د بادشاه
شتابي کړي شوي او په بیړي شرلي شوي په سبب د کلام د
۱۵ بادشاه او هغه داد په شوشن بیره کښې ورکړي شه ۱۵ او
مردکي د بادشاه له حضور په شاهانه لباس کښې آسماني او
سپیني پوشاک اغوستي او يو لوي تاج د سرو زرو او
کربنینه قباء شاهي کتاني او ارغواني اغوستي وووت او هغه
۱۶ ښهر شوشن ښادمان او خوشحالیده ۱۶ او یهودیانو له روښنائي
او خوښي او شادماني اوقار وشول ۱۷ او په هري صوبي اصوبي
او په هر ښهرا ښهر کښې هرځاي چه د بادشاه خبر او داد
ورسیدل د یهودیانو خوښي او شادماني د میلمستیا او
ښه ورځ وه او د هغي زمکي له خلقو ډیرو خیل ځانونه
یهودیان کړل ځکه چه په دوي باندي د یهودیانو هیبت
پریووت ٭

# نهم باب

۱ آ او په دوو لسمه مياشت هغه د ادار مياشت د
دغي په دیارلسمه ورځ چه د بادشاه د خبري او داد
په عمل کولو را رسید په هغي ورځي چه د یهودیانو دښمن
په کښې منتظر وو چه په دوي به سلطنت وکړي مګر

هغه اړولی شوی وه تر دي حده چه یهودیانو په خپلو
٢ نفرتناکو سلطنت ورکړه ٢ نو یهودیان په خپلو ښهرونو کښي
د احشویروش بادشاه په ټولو صوبو کښي جمع شول تاچه
خپلو بد خواهانو ته لاسونو اوږده کړي او هیڅ سړي د دوي
د وړاندي ونه دریده ځکه چه د دوي هیبت په ټولو
٣ قومونو باندي پریووت ٣ او ټولو سردرانو د صوبو او اخشدر
ستربانو او پیشواؤ او عاملانو د کاریګري چه د بادشاه د
پاره وو د یهودیانو مددګاري کوله ځکه چه د مردکي هیبت
٤ په دوي باندِ پریوتلي وه ٤ ځکه چه مردکي د بادشاه په
کور کښي لوي وه او د ده شهرت په ټولو صوبو کښي لاړ
شه ځکه چه دا سړي مردکي په تللو تګ او بزرګ شه
٥ ٥ نو یهودیانو خپل ټول دښمنان د توري په مخ ووهل او
برباد ئې کړل او څه چه ئې رضا وه په خپلو غلیمانو ئې
٦ وکړل ٦ او یهودیانو په شوشن هغه بیره کښي پنځه سوه
٧ سړي ووژلل او برباد ئې کړل ٧ او پرشنداثا او دلفون
٨ ٩ او اسپاثا ٨ او پوراثا او ادلیا او اریداثا ٩ او پرمشتا او
١٠ ارساي او اریداي او ویزاثا ١٠ د هغه لس زامن د هامان
بن همداثا دښمنان د یهودیانو ئې ووژلل لیکن دوي لاسونه
١١ خپل د هغو په لوټ اوږده نه کړل ١١ په دغي ورځي د هغو
وژلیو شمار چه په شوشن بیري کښي شوي وو د بادشاه
١٢ د وړاندِ وروړي شه ١٢ او بادشاه آستر ملکي ته وویل چه
په شوشن بیري کښي یهودیانو پنځه سوه سړي او لس
زامن د هامان ووژلل او برباد کړل نو د بادشاه په باقي صوبو
کښي به دوي څه کړي وي ؟ نو ستا سوال څه دي او هغه
به تاته درکړي شي او ستا او سه ستا څه لټونه ده او هغه به

١٣ په عمل راوړلې شي ١٣ نو آستر ووې چه که په بادشاه باندِ
ښه وي نو صبا دِ هم هغو يهوديانو ته چه په شوشن کښ
دي اجازت ورکړې شي چه داسي وکړي لکه داد دنن
ورځ او هغه لس زمن د هامان په ړښې باندِ سولئ دِ
١٤ کړې شي ١٤ نو بادشاه وويل چه داسي دِ وکړې شي او هغه
داد په شوشن کښ ورکړې شه او دوي هغه لس زامن
١٥ دهامان په سولئ کړل ١٥ او هغه يهوديان چه په شوشن
کښ وو هم جمع شول په څورلسمه ورځ د ادار د مياشتي
او په شوشن کښ ئې درې سوه سړي ووژلل مګر په لوټ
١٦ ئې خپل لاسونه اوږده نه کړل ١٦ او هغه نور يهوديان چه
د بادشاه په صوبو کښ وو را جمع شول او په خپلو
ځانونو باندِ ودريدل او له خپلو د ښمنانو په ارام شول او
له غليمانو خپلو ئې پنځه اويا زره قتل کړل مګر لاسونه ئې
١٧ په لوټ اوږده نه کړل ١٧ او د ادار د مياشتي په ديارلسم
تاريخ او په دغي کښ په څورلسم ئې آرام وکړ. او هغه ئې
١٨ د خښلو او د ښادي ورځ مقرره کړه ١٨ او هغه يهوديانو
چه په شوشن کښ وو په ديارلسم په دغي کښ او په
څورلسم په دغي کښ جمع شول او په دغي کښ ئې په پنځه
لسم ارام وکړ او دغه ئې د خښلو او د ښادي ورځ مقرره کړه
١٩ ١٩ او دي د پاره د هغه کليوال د فرازي کليو يهوديان چه په
فرايز وانډو کښ او سيدل دغو څورلسمه د ادار د مياشتي
د ښادي کولو او د خښلو د پاره او د ښيګړي ورځ او د پاره
د بخري استولو سړي خپل ملګري ته مقرره کړه :
٢٠ ٢٠ او مردکي د دغي خبري وليکلي او خطونه ئې ټولو يهوديانو
ته واستول په ټولو صوبو د احشويروش بادشاه کښ

٢١ که نژدي که لري وو ٢١ تا چه په دوي بانْدِ قايم کړي چه د
ادار د مياشتي د څورلسمي ورځي او د پنځلسمي ورځي په دغه
٢٢ کښې دِ په هر کال کال کښې عمل کونکي دِ وشي ٢٢ موافق د
هغو ورځو چه په کښې يهوديانو له دښمنو څخه ارام وموند
او هغه مياشت چه په کښې د دوي غم په ښادي اړولي شه
او د ويرله ورځي د ښيګړي د پاره تا چه دوي ئې د ځښنلو او
د ښادي کولو سره خپل ملګري ته او بخرو خوارانو ته ورځي
٢٣ مقرري کړي ٢٣ او يهوديانو هغه قبول کړل لکه چه ئې د عمل
کولو شروع کړي وه او لکه چه مردکي ور ته ليکلي وو ٢٤
٢٤ ځکه چه هامان بن همداثا هغه اجاجي د ټولو يهوديانو دښمن
په يهوديانو بانْدِ حساب کړي وه چه نابود ئې کړي او د دوي
د فنا کولو او نابود کولو د پاره ئې پور يعني ګتهه پچه اچولي وه
٢٥ ٢٥ او چه هغه بادشاه ته ور ننوتله نو هغه په ليکلو سره امر کړل
چه هغه بد تدبير چه ده په يهوديانو باندي حساب کړي
وه د ده په سر دِ وګرزولي شي او چه دي او د ده زامن دِ
٢٦ په وني باندي ځوړندولي شي ٢٦ ځکه دوي دغه ورځي لره
پوريم د پور په نوم وبللي په دي بانْدِ د دغو کاغز په
ټولو خبرو بانْدِ او په هغه داسي هسي بانْدِ چه ئې ليدلي وي او
٢٧ په هغه چه دوي ته رسيدلي وو ٢٧ هغو يهوديانو قايم کړل
او په خپلو ځانونو ئې قبول کړل او په خپل اولاد او په هغو ټولو
چه دوي سره ګډ شوي وو چه داتيرنه شي چه دوي به
په دغو هر کال کال د دوي د ليکلو او د دوي د وقتونو په موافق
٢٨ عمل کونکي دِ شي ٢٨ او چه دغه ورځي به په ياد لري او به
کولو دِ شي هر دَورا دَور خاندان اخاندان صوبه په صوبه
او ښهر په ښهر او دغه د پوريم ورځي به هيڅري د يهوديانو

له مینځ نه تیریدلي نه شي او نه د دوي زکر د دوي له اولاد
شوکولي شي ٢٩ او آستر ملکي لور د ابیحایل او مردکي هغه یهودي ٢٩
په تول زورتیا سره ولیکل چه د دوي دویم خط د پوریم قایم
کړي ٣٠ او هغه خطونه ئي د احشویروش د بادشاهت ٣٠
یو سل اووه ویشتو صوبو ته تولو یهودو ته د سلامتي او
د امان په خبري واستول ٣١ چه دغه ورځي د پوریم په ٣١
خپلي خپلي زماني کښښ قایم کړي لکه چه مردکي هغه یهودي
او آستر هغه ملکه په دوي باندِ قایم کړ او لکه چه دوي
په خپلو ځانونو باندِ او په خپل اولاد باندِ قایم کړي وو خبره
د روژه دِ لري او د دوي د ناري ٣٢ او د آستر له امر سره ٣٢
د دي خبري د پوریم قایمي شولي او په کتاب کښښ ولیکلي
شول ٭

## لسم باب

آ او احشویروش هغه بادشاه په زمکي او د دریاب په جزیرو ١
باندِ خراج مقرر کړ ٢ او د ده د زورتیا او د جبارت تول عمال ٢
او د مردکي د لويي جنخت بیان چه بادشاه ورلوي کړ دغه
خو د مادي او د فارس د بادشاهانو د روزنامي په کتاب کښښ
لیکلي نه دي څه؟ ٣ ځکه چه مردکي هغه یهودي په دویمه ٣
درجه کښښ له احشویروش بادشاه سره وه او د یهودو په
مینځ کښښ لوي وه او د خپلو ډیرو ورونړو په رضا وه او
د خپل امت د نیکي غوښتونکي وه او د خپل تول اولاد
د پاره د سلامتي ویونکي شه ٭

تمام شه

خواب ورکړ و ئي ویل چه کنزه ایّوب خوشي له الله نه ویره کوِي
١٠ څه؟ ١٠ کنزه تا دَده په کرداکرد او دَده دَ کور په کرداکرډ او دَده دَ مال
په کرداکرد له هري خوا نه جار تړلي نه دي څه؟ تا دده دَ لاس کار ته
١١ برکت ورکړي دي او دده څاروي ئي په زمکه کښ خواره کړِي دِي ١١ لیکن
اوس دِ خپل لاس اوږد کوه او ټول مال دده مسه کړه نو دَي به
١٢ ستا په مخ کښ له تا نه انکار وکړِي ١٢ نو خداوند شیطان ته وویل کوره
ټول مال دده ستا په لاس کښ دَي لیکن ده ته لاس مه اوږدوه
پس شیطان دَ خداوند دَ مخ له وړاندِ وووت
١٣ ١٣ او یوه ورځ داسي وُه چه دده زامنو او لوڼو په کور دَ خپل
١٤ مشر ورور کښ خوړل او شراب څښل ١٤ چه یو استاذي ایّوب ته ورغي
١٥ او و ئي ویل چه غوایانو یویه کوله او خري ئي له څنګ څریدلي ١٥ نو دَ
سبا خلق ورباندِ پریوت او راَئي نیول او نوکران ئي دَ توري په مخ
١٦ ووهل او زه یوازې یچ شوم چه تا خبر کړم ١٦ او چه لا دغه خبره کوله
بل ورغي او و ئي ویل چه دَ الله اور له آسمانه راپریوت او کډي او
نوکران ئي سیزلي دِي او و ئي خوړل او زه یواځي یچ شوم چه تا خبر کړم
١٧ ١٧ او چه لا دا خبره ئي کوله بل ورغي او و ئي ویل چه کلدانیان دري
فرقي جوړ شول او په اوښانو ئي هجوم وکړ او راَئي نیول او نوکران دَ
١٨ توري په مخ ووهل او زه یواځي یچ شوم چه تا خبر کړم ١٨ او چه لا
دا خبره ئي کوله بل ورغي و ئي ویل چه ستا زامنو او ستا لوڼو خوړل
١٩ او شراب څښل دَ خپل مشر ورور په کور کښ ١٩ او کوره چه دَ بیابان
له لوري سخت باد راغي او په څلورو کونجونو دَ کور ولګیده او په هلکانو
٢٠ پریوت او مړه شول او زه یواځي یچ شوم چه تا خبر کړم ٢٠ نو ایّوب
پورته شه او خلقه خپله ئي څیره کړه او دَ خپل سر وینښته ئي وخریل
٢١ او په زمکه پریوت او سجده ئي کړه ٢١ او و ئي ویل چه زه دَ خپلي مور
له کیډي برمنډ را ووتم او برمنډ به هلته وګرځم خداوند راکړل او

٢٢ خداوند واخستل دَ خداوند نوم دِ مبارک وِي ٢٢ په دي ټولو کښي
ايوب خطا و نه کړه او نه ئي الله ته دَ جهل نسبت وکړ +

## دويم باب

١ آ او يوه ورځ داسي وه چه ابناء الله ورغلل چه دَ خداوند دَ وړاندي
په خدمت ودريږي او شيطان هم دَ دوي په مينځ کښي ورغي چه دَ
٢ خداوند دَ وړاندي په خدمت ودريږي ٢ نو خداوند شيطان ته ووئيل
چه ته له کومَ راځي نو شيطان خداوند ته ځواب ورکړ و ئي وئيل چه
٣ له ګرزيدلو په زمکه کښي او له سير کولو نه په هغه کښي ٣ نو خداوند
شيطان ته ووئيل چه ګنړه تا ځما په بنده ايوب خپل زړه متوجه کړي
دي څه ؟ ځکه چه دَده په شان په زمکي څوک نشته کامل او راستباز
سړي چه له الله ويريږي او له بدئ کناره اوسي او لا تر اوسه پوري
دي په خپل کمال ثابت اوسي او تا په ده باندِ ولمسولم چه بي سببه
٤ ئي ونغرم ٤ نو شيطان خداوند ته ځواب ورکړ و ئي وئيل چه پوست
په پوست او هر هغه څه چه انسان ئي لري دَ خپل ځان دَپارَ به ئي
٥ ورکړي ٥ ليکن ته اوس خپل لاس اوږد کړه او دَده هډوکي او غوښه
٦ مسه کړه نو دي به ستا په مخ کښي له تا انکار وکړ ٦ نوخداوند شيطان
ته ووئيل ګوره هغه ستا په لاس کښي دَي ليکن دَده ځان وساته
٧ ٧ نو شيطان دَ خداوند له حضور نه وووت او ايوب ئي په
٨ خرابو ننکيو وواهه له تلي دَ پښو نه ترکوکيِ پوري ٨ نو دَ ځان دَپارَ
ئي يو کودري واخست چه پرِ و ئي ګروي او دي دَ ايرو په مينځ کښي
٩ ناست وُه ٩ نو ده ته دده ښځي ووئيل چه ته لا تر اوسَ په خپل کمال
١٠ ثابت اوسي دَ الله انکار وکړه او مړ شه ١٠ او ده ور ته ويل چه دَ يوي
دَ جاهلانو په شان خبري کوي مونږ دِ دَ الله له نزده ښه څيزونه قبول
کړُو او بد دِ قبول نه کړُو څه؟ په دي ټولو کښي ايوب په خپلو شونډو
خطا و نه کړه

١١ ١١ نو هرکله چه دري یارانو دَ ایّوب دا ټولي بدیِٔ چه په ده راغلي
واوریدي نو هر یو له خپله ځایَ ورغي الیفازِ تیمانيَ او بِلدد شوحِي او
صوفر نعمانيَ او وعده ئي سره وکړه چه ورشِي او ورسره وِیر وکړِي او
١٢ تسلِي ورکړِي ١٢ او دوي خپلي سترګي له لرِي ورپورته کړي او وئي نه پېژاند
نو دوي خپل آوازونه پورته کړل او و ئي ژړل او هر یوه خپله خلقه
څیري کړه او په خپلو سرونو ئي خاوري دَ آسمان په لورِي ولوستلي
١٣ ١٣ او له ده سره اوه ورځي او اوه شپي په زمکه کښیناستل او یوه له
ده سره په یوي خبري خبره ونه کړه ځکه چه دوي ولید چه دَده غم بيحدَ لوي وه *

## دریم باب

١ ١ پس له دي ایّوب خپله خوله پرانتله او په خپلي ورځي ئي لعنت وکړ
٢ ٢ او ایّوب په خبرو سر شه او و ئي ویل

٣ ورکه دِ شِي هغه ورځ چه زه په
کښ وزیږیدلم
او هغه شپه چه و ئي ویل چه په
ځوان به حامله شِي
۴ دغه ورځ دِ تیاره وِي
الله دِ په دغي له پاسَ نګاه ونه کړِي
او په دغی دِ رڼا و نه ځلیږِي
۵ هغه دِ تیاره اودَ مرګ سورِي ونیسِي
په هغي دِ اوریځ وغوزیږِي
دَ ورځي کسوفونه دِ وویروِي
۶ لیکن دغه شپه دِ توره تیاره ونیسِي
او دَ کال دَ ورځو په مینځ کښ دِ
خوشحاله نه شِي
او دَ میاشتو په شمار کښ دِ
داخله نه شِي
۷ ګوره دغه شپه دِ شنډه وِي
په هغي کښ دِ دَ خوښي آواز واوریدلي
نه شِي
۸ هغوي چه په ورځي لعنت کونکي دِي
په هغي دِ لعنت وکړِي
او هغوي چه اژدها ویښولو ته تیاردِي
۹ دَ هغي دَ نمازخفتن ستوري دِ تاریک
شِي
نور ته دِ وګورِي او نه وِي او دَ
صباح ځریکه دِ ونه وینِي
١٠ ځکه چه دغي ځما دَ مور دَ ګیډي
دروازي بندي نه کړي
او ځما له سترګو ئي کړبختِي پټه نه کړه

۱۱ ولې زه له رحم نه مړ نه شوم
هرکله چه زه له ګېډې راوتلم نو ولې
مې روح ونه سپاره
۱۲ ولې زنګانه تم کړلم
او څله تې چه ما ورودل
۱۳ څکه چه اوس به زه ملاست وم
او قرار به وم
هغه وقت به په راحت سره اوده وم
۱۴ له بادشاهانو او له سردارانو دَ
زمکې سره
هغوي چه دَ خپلو ځانونو دپاره ئې
ویرانې جوړولې
۱۵ او یا له رئیسانو سره چه سره زرئې لرل
چه کورونه ئې له سپینو ډک کړل
۱۶ یا لکه پټه شوې سقطه زه شوې
نه وَې
یا لکه هغه دَ ګیډې هلکان چه
رڼا ئې لیدلې نه ده
۱۷ هلته به شریران له خرابۍ کولو تم وِې
او هلته به ستومانه آرام مومي
۱۸ بندیان سره به راحت کړې دَ کار
آخستونکې آواز نه اورې وروکې او
۱۹ کبیر خو هلته دي او مریې له
خپل خاونده نه ازاد وِي
۲۰ څله غمزده ته رڼا ورکېږي
او ژوند تلخ ځان وال ته
۲۱ هغوي چه دَ مرګ انتظار کوِي او
هغه نه راځي
او په هغه باندِ له خزانو نه ډېر
کنودل کوِي
۲۲ هغه خوشحالي کونکي او ښادماني
وکړي
هرکله چه قبر مومي
۲۳ هغه سړي ته چه وربانِدئې لار
پټه شوې ده
او الله ئې په ګرداګرد جار تړلې دَې
۲۴ څکه چه څما دَ ډوډئ له خوړلو
وړاندې ساره آهونه راځي
او دَ اوبو په شان غوریږونه رانه
خیژي
۲۵ هغه ویره چه زه ورنه ویریدم
راباندې راغله
او هغه چه ورنه ترسیدم ما ته
راځي
۲۶ زه قرارې نه لرم او نه تم کېږم
او نه آرام کوم او عذاب راځي +

## څلورم باب

۱ نو الیفازتیماني ځواب ورکړ و ئې
ویل

۲ که چرې څوک له تا سره دَ یوې
خبرې آزمایش وکړي
نو ته به ناراض شې څه؟
لیکن څوک توانیږي چه له خبرو
منعَ وکړي
۳ گوره تا ډیرو ته رهنمائي کړې دَه
او سُست لاسونه دِ مضبوط کړي دي
۴ ستا خبرو ښوئیدونکي ودراوه
او رپیدونکي زنګون دِ ټینګ کړي دي
او اوس چه په تا درغي نو ناراضه
شوې
۵ چه ته ئې مسه کړې نو حیران شولې
باري ستا تقویٰ ستا اسره نه ده
څه؟
۶ او ستا امیدواري ستا دَ لارو کمال
۷ یاد کړه که نه څوک هلاک شوي دي
چه هغه بې‌عیب وُو
او چرې راستبازان نابود شوي دي څه؟
۸ لکه چه تا ولید چه یویه کونکي دَ بدي
او کرونکي دَ کمبختي هغه لوکوي
۹ په دم دَ الله به برباد شي او ده
دَ پوزې په باد به فنا شي
۱۰ غرا دَ زمري او آواز دَ تند زمري
او داړې دَ زمري دَ بچو ماتې
شولې

۱۱ زوړ زمری دَ ښکار له نه موندلو
هلاکیږي
او اکونړې دَ زمرې فنا
شول
۱۲ بیا ما ته یوه خبره ګونبې ورسیده
او څما غوږونو دده پسپسي قبول کړه
۱۳ دَ شپې دَ رؤیا په اندیښنو کښې
: هرکله چه دروند خوب په سړو
پریوزي
۱۴ ما ته ویره او لرزه ورسیدل
نو ټول هډوکي مې ورپیدل
۱۵ نو یو روح څما په مخ تیر شه
: څما دَ جسې ویښته زیږي
ودریدل
۱۶ هغه ولاړوه او ما دَ هغه
شکل ونه پیژاند
یو تمونه څما دَ سترګو دَ وړاندې
ما یو نرم آواز واوریده
۱۷ چه باري انسان له الله نه زیات
صادق وي یا څو سړي
له خپل خالق نه زیات پاک دي
۱۸ ګوره ده په خپلو بندګانو اعتبار
نه کوي او فرښتو ته دَ احمقي
۱۹ نسبت ورکوي: ۱۹ نو لا څو سره

زیات سکونت کوِنکي دَ ختو دَ کوروِنو: چه بنیاد ئي په خاورو کښ دي: او
٢٠ دَ چینجي دوړاندِ میده کیږِي ٢٠ دَ صباح او دَ نماښام په مینځ کښ
٢١ ماتیږِي: بي له خبر ورکونکي دوي ته تر ابده نابود کیږِي ٢١ له دوي نه
ددوي دکیږِي وياستي يستلي نه دِي څه ؟ بي حکمتَ مره کیږِي *

## پنځم باب

١ ١ اوس ئي وبوله ته ځواب درکونکي لرِي څه؟ او له پاکانو به دَچا په
٢ لورِي متوجّه شي ٢ ځکه چه غصّه نادان وژنِي: او غیرت احمق مروِي
٣ ٣ ما نادان ولید چه بیخ نیسِي: او ناڅاپه مِ دَ هغه په میشتوکنه
لعنت وکړ:

٤ ٤ دَده اولاد له سلامتِي لري دي:
او په دروازِي کښ میده کیږِي:
او خلاصونکي ئي نشته:
٥ ٥ دَ هغوي لوگړي وږِي سړِي خورِي:

او اخلِي ئي څو چه له اغزو نه: او دَدوي دولت نه تږِي اسویلي کوِي
٦ ٦ بلاوي خو له خاورو نه راوزِي: او کمبختِي له زمکي نه زرغونیږِي:
٧ ٧ لیکن انسان دَ مشقت دَپارَ زیږیدلي دي: لکه بڅرِي پورته الوزِي
٨ ٨ لیکن زه چه یم دَ الله طلب به کوم: او خپل کار به په الله
٩ وسپارم: ٩ هغه چه دَداسي لویو کارونو کونکي دَي چه پوښتنه ئي
١٠ نه کیږِي: او عجائب چه نه شماریږِي: ١٠ چه دَ زمکي په مخ باران اوروِي:
١١ او دَ پټیو په مخ اوبه استوِي: ١١ هسي هغه چه ټیټ دي په بلندِي کښ
١٢ وکرزوِي: او هغه چه غمجن دي امن ته خیژِي: ١٢ هغه چه دَ چلیانو
١٣ فکرونه باطلوِي: هسي چه دَدوي لاسونه مراد نه پوره کوِي: ١٣ هغه
چه دانایان ددوي په حیلو کښ نیسِي: او دَ مکّارانو مصلحتونه نسکوریږِي:
١٤ ١٤ په ورځي کښ له تیارِي سره ټکر وهي: او په غرمي کښ لکه په شپي
١٥ کښ ټپریږِي ١٥ هغه چه محتاج له توري او دَ هغو له خولو: او دَ

۱۶ قوّتناک له لاسَ خلاصوِي:۱۶ نوذليل اميد لرِي او بدي خپلي خولي
۱۷ پټي کړي:۱۷ گوره خوښي ده هغه کس لره چه الله تنبيه ورکوِي: نو
۱۸ ته دَ قادر ملامتيه سپکه مه گڼه:۱۸ ځکه چه دَي زخمي کوِي او تړِي:
۱۹ او وهي او لاسونه ئي شفا ورکوِي:۱۹ په شپږ سختيو کښ به دِ خلاص
۲۰ کړِي: او په اوو کښ به دِ ضرر مسه نه کړي:۲۰ په لوږي کښ به له
۲۱ مرگَ دِ خلاص کړِي: او په جنگ کښ دَ توري له لاسه:۲۱ ته به دَ ژبي
۲۲ له تازياني پټ اوسي: او هرکله چه خرابِي درشِي نو ته به نه ويريږي:۲۲ ته
به په خرابي او په قحط سالِي پوري خاندي: او دَ زمکي له درندگانو
۲۳ به نه ويريږي:۲۳ ځکه چه دَ پټِي له کاڼو سره دِ عهد دَي: اودَ ځراگا
۲۴ له درندگان به سلامت يي:۲۴ نو ته به پوه شي چه ستا خيمه په
امن ده: او ته به دَ خپلي ميشتوگني خبر واخلي او هيڅ شَي به دِ ورک
۲۵ نه وِي:۲۵ او ته به پوه شي چه ستا فضل ډير وي: او ستا اولاد لکه
۲۶ دَ زمکي وابنه:۲۶ ته به په زړېدِي کښ په اديره کښ ننوزي: لکه
۲۷ اخستل دَ ځمتو په خپل وقت کښ:۲۷ گوره ما دَ دغه پوښتنه وکړه
او هسي دي: دا واوره او خپل ځان دَپارَ ئي وپيژنه *

# شپږم باب

۱ ۲ ۱ نو ايوّب ځواب ورکړ وئي ويل:۲ کاشکي چه ځما غم تول کړي شوَي:
۳ او ځما ټول مصيبتونه په وزنونو پورته کړي شوَي:۳ ځکه چه اوس خو
به دغه دَ درياب له شگو زيات درانه وِي: دي دَپارَ ځما خبري لغوه
۴ دِي:۴ ځکه چه غشِي دَ قادر په ما کښ دِي: او دَده زهر ځما روح څښِئ
۵ دهشتونه دَ الله ځما په خلاف صف تړي:۵ گڼه گورخر په وابنو
۶ نړِيږي څه؟ يا غويي په خپل خوره رمباړِي وهي څه؟ يا بي خوندَه بي
له مالگي خوړلي شِي څه؟ يا دَ سابو په زومنه کښ خوند موندلى شِي
۷ څه؟ ۷ هغه نفرتِي څيز چه ځما ځان ئي له مسه کولو نه ستنيده
۸ ځما لکه نفرتي ډوډئي شه:۸ اي کاشکي چه ځما غوښتنه راغلَي: او الله

٩ ځما امید راکړي: ٩ چه الله خوښه کړي چه زه لي میده کړي: او
١٠ خپل لاس لي کشاده کړي او زه لي پریکړي: ١٠ نو به ځما فخر په هغه
عذاب کښ کیده: چه شفقت نه لري: ځکه چه ما دَ قدّوس له کلام
١١ نه انکار و نه کړ: ١١ ځما څه توّت دي چه انتظار وکړم: او ځما نهایت
١٢ څه دي چه زه خپل ځان وصبروم: ١٢ ځما توّت دَ کاڼیو توّت دي څه؟
١٣ ځما غوښي زیړ دي څه؟ ١٣ داسي نه ده؟ چه په ما کښ مددګاري
نشته؟ او وس را نه شړلي شوي دَه:
١٤ ١٤ غمزده ته له خپل دوست نه ذرّه سوي (په کار دي):
١٥ اګر که دَ قادر ویره ترکه کړي: ١٥ لیکن ځما وروڼو دَ اوبو دَ والي
١٦ په شان ټګي وکړ: دَ خوړو دَ لښتو په شان تیریږي: ١٦ هغه چه له
١٧ ساړه نه کړنګ دي: او په هغه واوره پټه کیږي: ١٧ نو چه ګرمي شي
١٨ فنا کیږي: او چه تاو شي نو له خپل ځاي نه نابود کیږي: ١٨ قافلي دَ
١٩ هغو له لارو کاږه کیږي: ویراني ته ورګډه شي نو هلاک شي: ١٩ دَ تیما
٢٠ قافلو هغه وکتله: او دَ سبا کاروانونو لي امید وکړ: ٢٠ په هغه کښ
چه دوي توکّل کاوه پښیمانه شول: هغوي دي ته ورغلل نو شرمنده
٢١ شول: ٢١ نو اوس خو تاسو ددي په شان شولي: تاسي یوه وهنه ولیده
٢٢ نو وویریدلي: ٢٢ ګنړه ما و ویل چه څه راکړي: یا له خپل مال نه ځما
٢٣ دَپارَ څه رشوت راکړي: ٢٣ یا مِ له مدعي نه خلاص کړي: یا مِ دَ
٢٤ هیبتنکو له لاس نه آزاد کړي: ٢٤ ما ته رازده کړي نو زه به چپ
٢٥ شم: او ومِ پوهوي چه زه په کوم شي کښ ګمراه شوي یم: ٢٥ دَ راستباري
خبره ترخنګ زوراوري دي: لیکن ستاسو طعنه په څه دلالت کوي:—
٢٦ ٢٦ تاسي ګنړي څه چه په خبرو طعنه وکړي: او خبري دَ نا امید باد لره
٢٧ دي: ٢٧ بلکه تاسي په یتیم (هسک) اچوي: او خپل دوست ته دوغل
٢٨ کني: ٢٨ نو اوس په ما کښ پرس وکړي: نو زه به ستاسو په مخونو کښ
٢٩ دروغ ونه کړم: ٢٩ راوګرځي او بدي دِ نه وي: بیا راوګرځي په دي

٣٠ کښې م صِدق دئ: ٣٠ څما په ژبه کښې بدِي د څه؟ یا څما ستوني دَ فساد تمیز
کولي نه شِي څه؟ ✣

# اووم باب

١ آ انسان لره په زمکه کښې جانفشانِي نشته څه؟ او لکه دَ مزدور ورځي
٢ دده ورځي: ٢ لکه چه مرِيي سورِي ته شوق لرِي: او لکه چه مزدور خپلي
٣ مزدورِي ته اسید کوِي: ٣ هم هسي ما لره دَ نیستي میاشتي وویشلي
٤ شوي: او دَ مشقت شپي را ته مقرّر شوي: ٤ هرکله چه زه څملم وایم
چه کله به پورته شم شپه اوږده کیږِي: او تر صباح پوري په ناقرارِي
٥ موړ شم: ٥ څما غوښي له چینجو او له لوټي دَ خاورو سره پوشیده
٦ شوي: څرمن مِ سختیږِي او بیاچوِي: ٦ څما ورځي له ماکو نه زیاتي چابکي
٧ دِي: او په ناامیدِي کښې آخري کیږِي: ٧ په یاد کړه چه څما ژوند باد دي:
٨ او سترګي به مِ بیا خیر و نه وینِي: ٨ څما دَ کتونکي سترګي به م و نه وینِي
٩ ستا سترګي به په ما وِي او زه به نه یم: ٩ له وریځ تار په تار کیږِي
١٠ او ورکه کیږِي: هم هسي هغه چه دوزخ ته کوزیږِي نه راخیږِي: ١٠ هغه
به بیا خپل کور ته به و نه ګرزِي: او بیا به ئِي دده مکان و نه پیژنِي:
١١ ١١ زه هم خپله خوله نه منعَ کوم: دَ روح په تنګي کښې به خبري کوم:
١٢ دَ ځان په تلخِي سره شکایت کوم: ١٢ زه دریاب یم که نهنګ یم: چه
١٣ ته په ما بانِدِ نګهبان دروِي: ١٣ که زه ووایم چه څما کټ به تسلّي
راکړِي: او بیاونږه به مِ غم لږ کړِي: نو ته مِ په خوبونو ویروِي: او
١٥ په رؤیا مِ ترسوِي: ١٥ هسي چه څما ځان خپه کول خوښ کړل: او
١٦ له دي هډوکو مِ مرګ: ١٦ ما ته نفرت راځِي تر ابده ژوندون نه غواړم:
١٧ پرېږدِه مِ دده څکه چه څما ورځي پوکي دِي: ١٧ انسان څه دي چه ته
١٨ ئِي معتبر کړې: او چه خپل زړه پري کیږدي: ١٨ او هر صباح ئِي خبر
١٩ واخلي: او هره لحظه ئِي وآزمايي ١٩ ته به ترڅو له ما نه نظر نه پورته
٢٠ کوِي: او نه به مِ پرېږدِي چه خپلي لاړي و نغړم: ٢٠ ما خطا کړي دَه

زه تا له څه وکړم: اي دَ سړو نګهبانه ما ولې دَخپل ځان دَپارَ نښه
۲۱ ګرزولي: تر دي حده چه په خپل ځان پیټي شم: ۲۱ او څه دَپارَ مِ ته
تقصیر نه بخښي او زما بدکاريِ به نه لري کوي: ځکه چه زه اوس په
خاورو کښِ ځملم: ته به مِ وقتِي و لټوي او زه به نه یم *

# اتم باب

۱ ۲ ۱ نو بِلدد سوحِي ځواب ورکړ وئ ویل ۲ چه دا به تر کومه پوري وايي:
۳ او ستا خبري به په تاکښ سخت باد وِي: ۳ کنړه الله عدالت کږوِي: یا
۴ قادر صدق کږوِي څه؟ ۴ که چري ستا زامنو دده خطا کړي وِي: او ده
۵ هغوي دَدوي دَ تقصیر لاس ته واسټول: ۵ نو که ته صبا وقتِي الله ته
۶ پورته شي او قادر ته زارِي وکړي: نو که ته پاک او راستباز یي: ۶ نو
دي به اوس ستا دَپارَ ویښ شِي: او ستا دَ صداقت کور به سلامت
۷ کړِي: ۷ او که ستا اوّل وړوکي وِي نو ستا آخر به بيحده ډیر شِي :
۸ ۸ له اولو قرنو پوښتنه وکړه: او دَدوي دَ پلرونو پرسونو تاکید
۹ وکړه: ۹ ځکه چه مونږ خو پروني یو او نه پوهیږو: ځکه چه ځمونږ ورځي
۱۰ په زمکي باندِ سوري دِيځ ۱۰ نو دوي به تا ته درزده نه کړِي څه ؟
۱۱ تا ته دَدوي له زړونو به خبري ووزِي: ۱۱ کنړه کاني بي له ختټي لوئیږِي
۱۲ څه؟ او یا لوخي بي اوبو زرغونیږِي څه؟ ۱۲ او هغه لا تر اوسه په
تازِکي کښِ ده لا پریکړي شوي نه ده: نو له ټولو وابښو وړنبي وچیږِي:
۱۳ ۱۳ دَ ټولو چه الله هیروِي داسي لاري دِي او دَ فاجر امید به نابود
۱۴ شِي: ۱۴ او دَ هغه اعتماد به قطع کړي شِي: او دَ هغه توکّل ګاه دَ
۱۵ غنړِي کور: ۱۵ هغه به په خپل کور تکیه وکړِي او نو به نه شِي:
۱۶ دي به هغه ونیسِي او هغه به و نه دریږِي: ۱۶ هغه دَ نمر له مخه
۱۷ تَر دي: او دده په باغ غوټيئ زرغونیږِي: ۱۷ او دَ هغه بیخونه په تُوده سره
۱۸ پیچلي شوِي دِي: او هغه دَ کانړو ځاي ولید: ۱۸ که هغه له خپل ځاي
ویستلي شِي: نو هغه به له ده انکار وکړي وایي به چه ته مِ لیدلي

۱۹ نه يې قدا دَ هغه دَ لارې خوښي ده: او له خاورو نور زرغونيږي:
۲۰ ۲۰ گوره الله کامل نه رد کوي: او دَ بدکارانو لاس نه
۲۱ مضبوطوي: ۲۱ هرکله چه دي ستا خوله له خندا ډکه کړي: او ستا
۲۲ شونډي دَ خوښي له آواز نه: ۲۲ ستا کينه کښان به پښيماني واغوندي:
ليکن خيمې دَ شريرانو به نه وي ❊

# نهم باب

۱ ۲ ۱ نو ايوّب ځواب ورکړ و ئې ويل: ۲ دا صحيح ده زه وپوهيدم چه
داسي دي: نو انسان به دَ الله دَ وړاندِ څرنګ صادق کړي شي:
۳ ۳ که دي وغواړي چه له هغه سره بحث وکړي نو له زرو به يو
۴ ځواب ور نه کړي: ۴ هغه حکيم په زړه او تيز قوت دي: چا په ده
۵ سختي وکړه او سلامت پاتي شه: ۵ هغه چه لرې کونکي دَ غرونو دي
۶ او هغوي نه پيژني: هغه چه په غضب سره ئې اړوي: ۶ هغه چه
۷ زمکه له خپل آرامګاه نه چړلوي: نو دَ هغي ستني وخوځيږي: ۷ هغه
چه نمر ته امر کوي نو هغه نه خيژي: او په ستورو مُهر لګوي:-
۸ ۸ هغه چه يواځي دَ آسمانونو غوړونکي دَي: او په لوړو دَ درياب
۹ تلونکي دي: ۹ کاريګر دَ بنات النعش او دَ کوپ او دَ پرووني: او حجره
۱۰ جوړونکي دَ جنوب: ۱۰ کونکي دَ داسي لويو کارونو چه تفحص ئې کيدلي
نه شي: او دَ عجائبو چه شمارلي نه شي
۱۱ ۱۱ گوره هغه په ما تيريږي او زه ئې نه وينم: او سير کوي
۱۲ او زه پرې خبر نه يم: ۱۲ هرکله چه دي وتښتوي څوک به ئې را ستون
۱۳ کړي: او څوک به ده ته ووائي چه څه کوي: ۱۳ الله خپل غضب نه
۱۴ ګرزوي: دَ رهب مددګار تر ده لاندِ ټيټ کيږي: ۱۴ په کوم لږ څه
۱۵ به ده ته ځواب ورکړم: او خپل کلام له ده سره خوښ کړم: ۱۵ څکه
چه اګر که زه صادق وَي: ځواب به مِ ورکړي نه وه: بلکه له خپل
۱۶ عدالت کونکي به مِ رحم غوښتلي وُه: ۱۶ که ما بللي وَي او ده ځواب

راکړي شوي وي: نو هم باور به مِ کړي نه وه چه ده مِ آواز واوريده:
۱۷ دا هغه دي چه په سيلئ مِ ميده کوي: او بي سببَ مِ پرهارونه ۱۷
ډير وِي: ۱۸ دي مِ نه پريږدِي چه ساه واخلم: لېکن په ترخو مِ موړ ۱۸
کوِي: ۱۹ که دَ قوّتناک دَ قوّت له جهته وِي نو دي وايِي گوره زه: او که ۱۹
دَ عدالت له جهتَ وِي نو څوک به ما ته وقت مقرر کړِي: ۲۰ که زه ۲۰
صادق شم نو په ما بانْدِ به څما خوله حکم وکړِي: او که زه کامل
يم نو گناهګار به مِ کړِي:
۲۱ زه کامل يم زه په خپل ځان پروا نه لرم ما خپل ژوند ۲۱
سپک وګڼړه: دا يوه (خبره) ده دي دَپارَه زه وايم ۲۲ چه کامل او شرير ۲۲
به دواړه فنا کړِي: ۲۳ که هغه ناڅاپه متروکه وژنِي: نو هم دَ صادقانو ۲۳
په آزمايلو مسخري کوي: ۲۴ زمکه دَ شرير لاس ته سپارلي شوي ۲۴
ده: دي دَ حاکمانو مخونه پټوِي: او که دي نه وِي نو هغه څوک دي؟
۲۵ څما ورځي له چپر نه زياتي چابکي دِي: تښتِي او خير نه وينِي: ۲۵
۲۶ دَ درمو له جالو سره تګ کوِي: لکه تجير چه خپل ښکار ته غوټه ۲۶
کوِي: ۲۷ که زه ووايم چه خپلي انديښني به هيري کړم: زه خپله ترش روئي ۲۷
به پريږدم او تازه به شم: ۲۸ نو زه له خپلو ټولو دردونو ويريږم: ۲۸
پوهيږم چه ته به مِ پاک و نه ګڼِي: ۲۹ زه به ګرم کړي شم: نو ولي ۲۹
عبث خوارِي کوم: ۳۰ که زه په واوري کښ غسل وکړم: او خپل لاسونه ۳۰
په زمئِ پاکيزه کړم: ۳۱ نو ته به مِ په ډب کښ ډوب کړِي: او خپلي ۳۱
جامي مِ رانه نفرت وکړِي: ۳۲ ځکه چه هغه څما په شان انسان ۳۲
نه دَي چه زه لِئ ځواب وکړم: او موږ ټول به عدالت ته راشو:
۳۳ څموږ په مينځ کښ ميانځګړي نشته: چه خپل لاس په موږ دواړو ۳۳
کېږدِي: ۳۴ له ما نه دِ دَ هغه همسا يورته کړِي: او دده دهشت دِ په ۳۴
ما ستم و نه کړِي: ۳۵ نو به زه خبره وکړم او ويره به ورنه و نه کړم: ۳۵
ځکه چه زه دَ خپل ځان په نزد داسي نه يم ٭

# لسم باب

۱ ۱ ځما ځان خپل ژوند زښت وګاڼه: زه به خپلي اندیښني جاري کړم:
۲ زه به دَ خپل ځان په تلخي کښ خبره وکړم: ۲ الله ته به وَوایم
۳ چه ته مِ مه کړموه: و مِ پوهوه ځله جګړه را سره کوي: ۳ دا ستا
په نزد ښه دَه چه ظلم وکړي ځه؟ چه دَ خپل لاس کار زبون کړي:
۴ او دَ شریرانو په مصلحتونو روښانه شي: ۴ تا لره دَ بشر سترګي دِي:
۵ یا لکه نظر دَ انسان هسي نظر کوي: ۵ ستا ورځي دَ انسان ورځي دِي
۶ ځه؟ یا ستا کالونه لکه ورځي دَ انسان دي ځه؟ ۶ چه ته ځما دَ
۷ بدي بحث وکړي: او ځما دَ خطاؤ تلاش وکړي: ۷ ستا په دانست کښ
چه زه شریر نه یم: او نه ستا له لاس نه خلاصونکي شته:
۸ ۸ ستا لاسونو هست کړم: او مونږ ټول وارۀ دِ جوړ کړو او بیا به
۹ مِ نه نغري ځه؟ ۹ یاد کړه چه زه دِ لکه خټه پیدا کړم: ته به مِ و
۱۰ خاورو ته ورګرزوي ځه؟ ۱۰ او تا لکه پئ نوي نه کړم ځه؟ او لکه پوځه
۱۱ چکه دِ نه کړم: ۱۱ تا مانه پوست او غوښه را وغوښتل: تا په هډوکو
۱۲ او په پلو وپیرلم: ۱۲ تا ماته ژوند او مهرباني بخش کړ: او ستا ملحظي
۱۳ ځما روح وساته: ۱۳ لیکن تا دا په خپل زړه کښ پټ کړل: زه پوهیږم
۱۴ چه دا ستا په نزد دَي: ۱۴ که زه خطا وکړم ته به مِ لحاظ وکړي:
۱۵ او ته به مِ له بدي نه پاک نه ګڼړي: ۱۵ که زه شریر شم نو هَي
په ما: او که زه صادق شم نو خپل سر به پورته نه کړم: زه له
۱۶ رسوائي نه موړ یم: او زه خپله خواري وینم: ۱۶ او که پورته شه
ته به مِ لکه زمري ښکار کړي: او بیا په ما باندِ خپل ځان عجیبه
۱۷ ښکاره کوي: ۱۷ تا خپل شاهدان نوِي کړل: او خپل غضب دِ په ما
زیات کړ: بدلي او جنګونه له ما سره دِي:
۱۸ ۱۸ نو زه دِ ولي له رحم نه راویستلم: کاشکي چه روح مِ

۱۹ سپارلي وي او هيڅ سترګو زه ليدلي نه وَيَ: ۱۹ نو زه به داسي وم
۲۰ لکه چه نه وِيَ: نو زه به له رِحِم نه قبر ته رَسَولي شوي وم: ۲۰ څما
ورځي لږ نه دِي څه؟ پرِي بِږ بِږده را نه لتم شه چه لږ څه تازه
۲۱ شم: ۲۱ وړاندِ له هغه چه لاړ شم ورنه راوبه نه ګرزم:
دَ تياري و زمکي ته او دَ مرګ سوري ته:
۲۲ ۲۲ زمکه دَ تارِيکِي دَ تورتم په شان: سيوري دَ مرګ او بي ترتيب: او
رنړا يُ لکه تورتم*

# يولسم باب

۱ ۲ ۱ نو ضوفر نعماتي ځواب ورکړ و ئي ويل: ۲ چه د ډيري خبري ځواب
دِ ورکړي نه شي څه؟
۳ يا قوّال سړي دِ صادق کړي شي؟ ۳ يا ستا لافي دِ سړي
چپ کړي څه؟
۴ يا ته دِ توقِي وهي او څوک دِ نه وِيَ چه تا پښيمانه کړي؟ ۴ چه
نه وايي چه څما تعليم پاک دي: او زه ستا په سترګو کښِ صادق
۵ يم: ۵ ليکن کاشکي چه الله په خپله خبري وکړي: او له تا سره ئي
۶ شونډي پرانتلي: ۶ او تا ته ئي رازونه دَحکمت ښکاره کړي:
چه دغه دَ ته په ته دَ فهم وس لري: نو ته به پوه شوي
چه الله په لږ شه نستا له بدِي نه تا پوروړي کوي:
۷ ۷ ته په مطلب سره الله مندلي شي څه؟ يا نهايت د قادر
۸ مندلي شه څه؟ ۸ دَي له آسمانونو بالا دَي ته څه کولي شي: له دوزخ
۹ نه زيات ژور ته څه پيژندلي شي: ۹ اوږدوالي ئي له زمکي زيات اوږد
۱۰ دي: او زيات سوړور له درياب نه: ۱۰ که دي تير شي يا ئي بند کړي: يا
۱۱ ئي عدالت ته جمع کړي: نو څوک به ئي راستون کړي: ۱۱ ځکه چه دي دَ
۱۲ خوشي سړي پيژني: او بدِي ويني نو دي به ئي آګاه نه کړي: ۱۲ ليکن
۱۳ خالِي سړي پوهه نه لري: لکه دَ کورخره بچي سړي زيږيدلي دَي: ۱۳ که

۱۴ ته خپل زړه تيار کړي:او لاس ور وغزوي:۱۴ که ته هغه بدي چه په
لاس کښ دِ ده لري کړي:او سرکښي په خپلي خيمي کښ نه اوسوي ؛
۱۵ ۱۵ نو هغه وقت به ته خپل مخ بيعيب پورته کړي:او ته به مضبوط
۱۶ يي او نه به ويريږي:۱۶ ځکه چه ته به خوارِي هيره کړي:لکه اوبه چه
۱۷ بهيږي ته به هغه په ياد کړي:۱۷ او ستا عمر به له غرمي نه پاس
۱۸ ودريږي:تاريکي به صباح وګرزي:۱۸ او ته به په قرار يي ځکه چه اميد
۱۹ به وموندلي شِي:ته به چارچاپيره تلاش وکړي او په قراري به څملي:۱۹ او
ته به پنډيږي او هيڅوک به دِ نه ترسوي:او ډير به ستا مخ ته زاري
۲۰ وکړي:۲۰ ليکن دَ شريرانو سترګي به هلاکي شِي:او دا پناه‌ګاه به ئي نابود
شِي:او دَ دوي اميد به دَ ځان سپار نه شِي ٭

## دولسم باب

۱ ۲ ۱ نو ايّوب ځواب ورکړ و ئي ويل:۲ چه دا صحي ده چه تاسي خلق يئ:
۳ اوحکمت به له تاسي سره مړ شِي:۳ بي له دي چه زه هم ستاسي
په شان فهم لرم:زه له تاسي څه کم نه يم او څوک نشته چه په
۴ دي شان څيزونه و پوهيږئ:۴ زه هغه سړي يم چه خپل دوست ته
مسخره شوم:هغه الله و باله او ده ځواب ورکړ:هغه رښتني کامل
۵ مسخره ده : ۵ دَ هغه په فکرونو کښ چه په آسودګي کښ دَي غم
۶ سپک دَي:دَ هغو دَپارَ چه پښي ئي ښوئيږي تيار دَي:۶ خيمي دَخرابونکو
راحت‌ناکي دِي:او هغه چه الله په غصّه کوي په قراري کښ دَي:
هغوي چه دوي خپل الله په خپل لاس کښ راوړي :
۷ ۷ ته له ځناورو پوښتنه وکړه نو تا ته به درزده کړي:او دَ
۸ آسمان له مرغانو نو به دِ خبر کړي:۸ يا زمکي ته خبره وکړه نو تا ته
۹ به تعليم وکړي:او دَ درياب ماهيان به خبره در ته وکړي:۹ څوک به
۱۰ له دي ټولو خبرو خبر نه وِي:چه دَ خداوند لاس دا جوړ کړل:۱۰ هغه
چه دَده په لاس کښ دَ هر يوه ژوندي ځان دي:او دَ ټول بشر روح

۱۱ ۱۱ نو غوږونه دَ خبرو ازمایښت نهٔ کوي څه ؟ لکه چه ستوني دَ ډوډئِ خوند
۱۲ اخلي: ۱۲ دَ زړبدئِ دَ زړوڅکه دانائِي ده: او په اوږدوالي دَ ورځو فهم:
۱۳ ۱۳ دده څخه حکمت او قدرت دَي: ده لره مصلحت او فهم
۱۴ دِي: ۱۴ کوره چه دي ئې وړوي نو جوړ به نه شِي: چه په سړي بند
۱۵ کړي پرانتلي به نه شِي: ۱۵ که دي اوبه منعَ کړِي نو وچي به شِي: که
۱۶ ئې پرېږدي نو زمکه به واړوِي: ۱۶ ده څخه عزّت او مدد دَي: ده لره
۱۷ گمراه کونکي او گمراه شوي دِي: ۱۷ مشیران بندیان بیاپي: او قاضیان
۱۸ احمقان کوِيْ ۱۸ دَ بادشاهانو کمربندونه پرانزي: او دَدوي ملا په کمربند
۱۹ ۲۰ تړِي: ۱۹ کاهنان په بند بیاپي: او قوّت ناک اړوِي: ۲۰ دَ معتبرانو خبري
۲۱ لري کوِي: او دَ سپینږیرو شوق وباسِي: ۲۱ په شرافو ذلّت اچوِي: او
۲۲ دَ زوراورو کمربندونه سُستوِيْ ۲۲ له تاریکِي نه رازونه ښکاره کوِي:
۲۳ او سوري دَ مرګ دَ رڼا ته وباسِي: ۲۳ دي قومونه ډیروِي بیا ئې
۲۴ نابود کوِي: دي قومونو ته کشادګِي ورکوِي او بیا ئې راولي: ۲۴ دَي دَ
زمکي دَ امتونو دَ سردارانو زړونه لري کوِي: او دوي په بیابان کښ
۲۵ بي لاري گمراه کړِي: ۲۵ په تیاري کښ ټپریږِي او رڼا نشته او دَ
مست په شان ئې ټنبوِي *

## دیارلسم باب

۱ ۱ کوره دا ټول څما سترګو ولیدل: غوږونو مِ واوریدل او پري خبر
۲ شول: ۲ هغه چه تاسي ئې پیژنئِ زه ئې هم پیژنم: زه له تاسي کم نه یم:
۳ ۳ لیکن زه اراده لرم چه له قادر سره خبري وکړم: او الله ته حجّت
۴ وکړم: ۴ او تاسي چه یئِ دروغ جوړوئِ: تاسي ټول سره باطل طبیبان
۵ یئِ: ۵ کاشکي چه خاموشِي سره خاموشِي کولي: نو دا به تاسو لره حکمت
۶ وُه: ۶ اوس څما حجّت واورئِ: او څما دَ شونډو دعوو ته متوجّه شئِ:
۷ ۷ تاسي به دَ الله دَپارَ ظلم ووایئِ څه ؟ او دده دَپارَ به په خیانت
۸ سره خبري وکړئِ څه ؟ ۸ او تاسي به دَده دَ مخ کوئِ: یا به دَ الله دَپارَ

۹ دعویٰ کوئِ: ۹ دا به تاسي لره ښه وِي چه دي مو تفحص وکړِي: یا ئې
۱۰ و غولوئِ لکه چه انسان غولوي شِئ: ۱۰ که تاسي په پټه روئیداري وکړئ
۱۱ نو په سزا سره به سزا درکړِي: ۱۱ دده جلال به تاسي نه ووېروِي
۱۲ څه؟ اودده وېره به په تاسي پرې نه وزِي څه؟ ۱۲ ستاسي خطبي
کارونه دَ ایرو مثالونه دِي: او ستاسي کوټونه دَ خټي کوټونه دِي:
۱۳ ۱۳ له ما نه چپ شئ پرې مِ بدده نو به زه خبري وکړم: بیا هر څه چه
۱۴ را رسیږِي را و دِ رسیږِي: ۱۴ ولي زه خپلي غوښي په خپلو غاښونو
۱۵ نیسم: او خپل ځان په خپل ورغوِي ږدم: ۱۵ کوره هغه مِ دِ ووژنِي زه
۱۶ به دَ هغه انتظار کوم: نو دَده دَ وړاندي خپلي لاري ثابتي کړم: ۱۶ نو
دا به ځما خلاصون لره وګرزِي: ځکه چه فاجر به دده دَ وړاندِ رانه شِئ
۱۷ ۱۷ په آوریدلو سره ځما خبري واورِئ: او ځما بنوونه ستاسي په غوږونو
۱۸ کښ: ۱۸ کورئِ ما دعویٰ سازه کړي ده: زه پوهیږم چه صادق به
۱۹ وګنړلي شم: ۱۹ هغه څوک دَي چه جګړه راسره وکړِي چه زه اوس چُپ
شم او روح وسپارم:
۲۰ ۲۰ تش دوه خبري مه راسره کوه: نو زه به ئې ستا له حضور
۲۱ نه پټ نه کړم: ۲۱ ته خپل لاس رانه لري کړه: او ته خپل هیبت
۲۲ مه رابوله چه وِم وېروي: ۲۲ بیا مِ ته وبوله او زه به ځواب درکړم:
۲۳ یا به زه خبره وکړم ته ځواب راکړه: ۲۳ ځما څومره ګناهونه او خطاوي
۲۴ دِي؟ ته ما ته ځما تقصیرونه او ځما خطاوي راوښیه: ۲۴ ته ولي خپل
۲۵ مخ پټوي: او دَ ځان دښمن مِ ګنړِي: ۲۵ ته به لري کړي پاڼي ووېروي
۲۶ څه؟ او وچه خاشه به وشړي څه؟ ۲۶ ځکه چه تا په ما باندِ تارخه
۲۷ کارونه ولیکل: او ځما دَ هلکوالِي ګناهونه په وراثت راکوي: ۲۷ نو تا
ځما پښي په کوندي کښ کیښوي او ځما ټول منزلونه دِ لحاظ کړل: او
۲۸ ځما دَ پښو په تلو دِ حدبندِي وکړه: ۲۸ او زه لکه سخا شِوي څیز نابود
کیږم: لکه جامه چه ینه ئې وخوري ✢

# څورلسم باب

۱ ۱ انسان چه دي زيږولي دَ ښځي دَي:دَ لږو ورځو او موړ په رنځ:
۲ ۲ لکه گُل غوټيئ وزي بيا و زيږيږي:او لکه سوري دړومي او نه
۳ ودريږي:۳ او ته په داسي باندِ خپلي سترگي پرانزي:او زه دِ له خپل
۴ ځان سره محکمي ته حاضر کړم:۴ څوک چه له ناپاک نه پاک راباسي
۵ يو نشسته:۵ هرکله چه دده ورځي مقرري دِي او دَ ده دَ مياشتو
شمار تا ځنځه دِي:او دده حد دِ معين کړي دي چه ترِ تيربه نه
۶ شِي:۶ ته ورنه وگرزه چه دي آرام وکړِي: تر دي چه دَ مزدور په
شان خپله ورځ پوره کړي:
۷ ۷ ځکه چه ونې لره اميد دَي که پريکړي شِي نوي تيغونه
۸ به بيا راوړي: او غوړگي ئي نه ورکيږي:۸ او که ئي بيخ په زمکه
۹ کښ ځنډئ شِيُ:او ستيه ئي په خاورو کښ مړه شِي:۹ نو دَ اوبو له
۱۰ بوي نه و ټوکيږي:او ښاخونه ئي لکه بوټي زرغونه شِيُ ۱۰ ليکن سړي
مړ کيږي او پړيوزي:سړي چه دي روح وسپاري نو هغه چرته دَي؟
۱۱ ۱۲ ۱۱ له درياب نه اوبه کميږي:او رود رنگړي او وچ کيږي:۱۲ او انسان
څملي او نه پاڅيږي:دوي به ويښ نه شِي څو چه آسمان باقي نه وِي
او نه به له خپل خوب نه بيدار شِي:
۱۳ ۱۳ کاشکي چه په گورندي کښ مِ پټ کړي:او ترڅو پوري
چه ستا غضب وگرزي پټ دِ وساتلي:او حد دِ راته مقرر کړي او
۱۴ زه به دِ ياد کړي:۱۴ که سړي ومري بيا به ژوندي شِي څه؟ ځما دَ
محنت په ټولو ورځو کښ به صبر کوم: تر هغه پوري چه بدله مِ
۱۵ راشِي:۱۵ نو ته به مِ وبولي زه به ځواب درکړم:ته به دَ خپل لاس
۱۶ کار ته شوق وکړي:۱۶ ليکن اوس چه دي قدمونه مِ شميري:ته ځما
۱۷ دَ خطاؤ حفاظت نه کوي څه؟ ۱۷ ځما تقصيرونه به خولي ترړلي هميانئ

کښې دِي او نه څما بدئِ بندوي :
۱۸ ۱۸ په تحقیق سره پریوتلي غر پراګنده کیږي : او کمر له خپل
۱۹ ځاي نه لرې کیږي : ۱۹ اوبه کڼړي رغړوي : او دَ هغو سیلابونه
دَ زمکه خاوري کوري کړي : او دا هسې به ته دَ انسان امید نابود
۲۰ کړي : ۲۰ ته په هغه مدام جبر کوي نو هغه ځي : مخ ئې تغیر شي او ته
۲۱ ئې وشړي : ۲۱ دَ هغه زامن عزّت مومي او نه ئې پیژني : او یا خو وړوکي
۲۲ شي او نه پرې پوهیږي : ۲۲ لیکن دده په ذات به دده غوښه درديږي :
او دده په ذات به دده ځان وِیر کړي ✣

# پنځه لسم باب

۱ ۱ نو الیفاز تیماني ځواب ورکړ و ئې ویل : ۲ دا بنایي څه چه دانا سړی
۲ له باطله معرفت ځواب وکړي : او له مشرقي باده خپله کېډه ډکه کړي :
۳ ۳ نو دَي به په بې فائدي خبري بحث وکړي : او په داسې خبرو چه نفع
۴ نه ورنه مومي : ۴ لیکن ته چه یې ویره ورکه کوي : او دَ الله دَ وړاندِ
۵ تقویٰ کمه کوي : ۵ ځکه چه ستا بدي ستا خولې ته ورزده کوي : او دَ
۶ چلیانو ژبې اختیار کوي : ۶ ستا خوله په تا شریر کرزوي : او نه زه : او
ستا شونډي په تا شاهدي لي :
۷ ۷ اوّل انسان ته پیدا شوي څه ؟ یا له غونډیو وړاندِ شروع شوي
۸ څه ؟ ۸ یا خو تا په مجلس دَ الله کښې واوریدل څه ؟ او یا دِ حکمت
۹ په خپل ځان کوتاه کړي دَي ؟ ۹ هغه څه چه ته ئې پیژني مونږ نه پیژنو
۱۰ څه ؟ او هغه چه ته پوهیږي هغه ځمونږ تحځه نشته څه ؟ ۱۰ هغه
سپین ږیري او هغه زیات زوړ چه ستا له پلار نه په ورځو کښې زیات
۱۱ لوي دِي ځمونږ تحځه دِي : ۱۱ آیا تا ځخه تسلّئ دَ الله لږدِي څه ؟ او کلام
چه له تا سره په نرمي ده :
۱۲ ۱۲ څه لره ستا زړه تا نیسي : او څه لره ستا سترګي رپیږي
۱۳ ۱۳ تر دی چه ته په الله روح خپل کرزوي : او له خولې دِ داسې خبري راباسې

۱۴ ۱۴ انسان څه دي چه پاک ئي وګڼړي: یا دَ ښځي زېږېدلي چه صادق
۱۵ ګڼړلي شِي: ۱۵ ګوره چه هغه په خپلو مقدّسانو اعتبار نه کړي: او
۱۶ آسمانونه دده په سترګو کښ پاک نه دِي: ۱۶ نو څومره زیات مکروه او
فاسد انسان چه ګناه دَ اوبو په شان څښِي:
۱۷ ۱۷ زه به ئي درو ښیم ته مِ واوره: او چه لیدلي مِ دي پري
۱۸ خبر به دِ کړم: ۱۸ هغه چه دانایانو له خپلو پلرونو پري خبر وکړ: او
۱۹ پټي ئي نه کړي: ۱۹ هغوي چه دوي ته یواځي زمکه ورکړي شوه: او
۲۰ دوي په مینځ کښ بیګانه نه تیریده: ۲۰ شریر چه دي خپلي ټولي ورځي
په عذاب تیرِوِي: او ټول شمار دَ کالونو دَ سرکښانو دَپارَ مقرّر شوي
۲۱ دَي: ۲۱ دَ هغه په غوږونو کښ دَ هیبت آواز دَي: دَ سلامتئِ په ساعت
۲۲ کښ ورته خرابونکي راځِي: ۲۲ هغه له تیاري نه دَ جاروتلو امید نه لرِيْ
۲۳ او دَي دَ توري منتظر دي: ۲۳ هغه دَ ډوډئِ دَپارَ آواره ګرزي وائِي
چه چرته دَي؟ او پوهیږِي چه دَ تیاري ورځ دده په لاسونو کښ تیاره
۲۴ ده: ۲۴ غم به آفت او تنګسیا وویروِي په ده به غالب شِي: لکه
۲۵ بادشاه چه جنګ ته تیار وِي: ۲۵ ځکه چه هغه خپل لاس په الله اوږد
۲۶ کړ: او په قادر ئي جبر وکړ: ۲۶ هغه ګردنکش په هغه باندي دَوْ
کوِي: دَ خپلو ډالونو په غټو سپږغو سره:
۲۷ ۲۷ ځکه چه هغه خپل مخ په غوړښت پټ کړ: او په خپلو
۲۸ ملاوْ ئي وازګه باروِي: ۲۸ نو هغه
به په خرابو ښهرونو کښ اوسِي په کورو کښ: چه دَ اوسیدلو نه وِيْ
۲۹ چه ډیران کیدلو ته تیار شولي: ۲۹ نه به هغه دولتمند شِي: نه به ئي
۳۰ دولت پاتي شِي: او دده ترقي به په زمکه کښ وغوړولي نه شِي: ۳۰ له ده
نه به تیاره لري نه شِي: دده ښاخونه به ګرم باد وچ کړي: او دَ خپلي
۳۱ خولي په دم به ئي لري کړي: ۳۱ هغه چه ګمراه کیږي په خرابي دِ توکل
۳۲ نه کوِي: ځکه چه خرابي به دده اجرت وِي: ۳۲ له خپل وقت نه به وړاندِ

٣٣ تمام شي او ښخي به ئي شني نه وِي: ٣٣ لکه ښاخونه دَ انګور هسي
٣٤ به ئي کچه داني ورېزوِي: او دده ګلونه به لکه زيتون وتښنډوِي: ٣٤ څکه
٣٥ چه دَ فاجرانو ټولي شنډ وِي: او اور به دَ رشوت خيمي وخوري: ٣٥ هغه
په کمبختي حامله اخلي او ګناه زيږوِي: او ددي کيډي فريب پيدا کوِي ‡

## شپاړسم باب

١ ٢ ١ نو ايوّب ځواب ورکړ و ئي ويل: ٢ چه دَدي په شان مِ ډير اوريدلي
٣ دِي: تاسي ټول دَ ماندګي تسلّي ورکونکي يئ: ٣ دَ خوشي خبري چري
٤ تماميږي څه؟ او څه څيز ته ولمسولي چه ځواب راکوي: ٤ زه هم توان
لرم چه ستاسي په شان خبري وکړم: که چري ستاسي ځانونه ځما
دَځان په ځاي وِي: نو به مِ خبري په تاسي انبار کړي وي: او تاسي ته
٥ به مِ سرخوځولي وه: ٥ بلکه په خپلي خولي به مِ ټينګ کړي وِي: او دَ
خپلو شونډو په تسلّي به مِ تم کړي وي:
٦ ٦ که زه خبري وکړم هم غم مِ نه منع کيږي: او که چپ شم
٧ نو څرنګ به رانه لاړ شي: ٧ ليکن اوس ئي ناقراره کړم ځما ټول جماعت
٨ خراب کړي دَي: ٨ تا راباندِ قبضه وکړه يو شاهد وموندلي شه: ځما
٩ لاغري ما ته پاڅيدله مخامخ ځواب راکوِي: ٩ دَده غضب څيري کړم او
و ئي ربړولم: هغه خپل غاښو ته وچيچل: ځما دښمن په ما باندِ خپلي
١٠ سترګي تيزي کوِي: ١٠ دوي خولي را ته چينګوِي: په تهمت سره ئي په وټ
باندِ په څپيړ ووهلم: هغو ټولو په ما باندِ سره ګُمک وکړ:
١١ ١١ الله ظالِم ته ورکړي يم: او دَ شريرانو په لاس کښ ئي
١٢ واچولم: ١٢ زه په راحت کښ وم او ده پړوکي پړوکي کړم: او په څټ
ئي ونيوم او ريزه ريزه ئي کړي يم: او زه ئي ده لره نښه ودرولي يم:
١٣ ١٣ دَده تيراندازانو مِ ګير کړي: هغه ځما پښتورګي څيري کړي او
١٤ شفقت نه کوِي: دي ځما تريخي په زمکه توئوِي: ١٤ هغه ما شکست
١٥ په شکست شکسته کوِي: هغه لکه جبّار راباندِ خيژي: ١٥ په خپلي

خرمني مِ شيږيِ وګنډلي ده: او خپل ښکر مِ په خاورو پټ کړي
دَي: ۱۶ له ژړا نه مِ مخ سور شه: او په ښڼرو مِ سوري دَ مرګ دي: ۱۶
۱۷ سره له دي چه په لاسو کښ مِ ظلم نشته: او دُعا مِ صافه دَه: ۱۷
۱۸ اي زمکي ته خما وينې مه پټوه: او خما فرياد ته دِ ۱۸
ځاي نه وِي: ۱۹ اوس هم ګوره په آسمانونو کښ مِ شاهد دَي: ۱۹
او خما شاهد په پاس عالمِ کښ دي: ۲۰ خما دوستان په ما مسخري ۲۰
کوِي: الله ته مِ سترګي اوښکي ځڅوِي: ۲۱ تا چه انسان دَ الله دَ ۲۱
وړاندِ مقدمې وکړِي: او ابنِ آدم دَ خپل دوست دَ وړاندِ: ۲۲ هرکله چه ۲۲
لږ کالونه تېر شِي: نو زه به په هغي لاري ځم چه ورنه راوبه نه ګرزم ❊

# اوه لسم باب

آ روح مِ هلاک شه ورځي مِ نيستي شوي: قبرونه ما لره دِي: ۱
۲ فريب کونکي راڅخه نه دِي څه؟ او خما سترګو دَ هغو په ۲
طعنو شپه تېره کړه: ۳ دَ خپل ځان ځخه مِ ته ضامن شه: هغه ۳
څوک دَي چه خما لاس وټکوِي: ۴ څکه چه تا دَدوي زړه له زيرکي منع ۴
کړي دي: دِ دَپارَ به ئې ته پورته نه کړِي: ۵ هغه چه خپل دوستان ۵
لوټ ته سپارِي: دَ هغه دَ زامنو سترګي به هلاکي شِي: ۶ ده خلقو ته ۶
يو متل ودرولي يم: او دَ مخ دَ ټوکلو دَپارَ شوم: ۷ له غم نه مِ سترګي ۷
تاريکي شوي: او ټول اندامونه مِ دَ سورِي په شان شول: ۸ راستان ۸
به دي ته تعجّب وکړِي: او پاک به په فاجر ورپورته شِي: ۹ صادق ۹
چه دَي خپله لار به ونيسِي: او پاک لاسي به قوّت زيات کړِي :
۱۰ ليکن تاسي ټول وګرزئِ او راشئِ: زه په تاسي کښ دانا ۱۰
نه مومم: ۱۱ خما ورځي تېري شوي: خما مرادونه دَ زړه پستلي شوِي دِ ۱۱
۱۲ هغوي ورځ شپه ګرزوِي: يوه رڼا چه تياري ته نژدي ده: ۱۳ هرکله ۱۲ ۱۳
چه زه اميد وکړم چه ګورنوي به مِ کور وِي: او په تياري به بچاونه
غوړوم: ۱۴ او قبر ته مِ وويل چه ته مِ پلار يې: او چينجو ته چه ۱۴

۱۵ تاسي مِ موړ او خوړ يئ: ۱۵ نو څما اميد چرته دي؟ څما اميد به څوک
۱۶ معيّن کړي: ۱۶ هغه به دَ ګورنډي آړونو ته کوز شي: څه چه سره
به خاورو کښِ آرام وکړي ✣

## اته لسم باب

۱ ۲ ۱ نو بلددِ شوحي څواب ورکړ وئي ويل: ۲ چه تر کومه پوري به تاسي
۳ خبرو ته دامونه ږدئِ: هوش وکړئِ او بيا به خبري کوو: ۳ ولي مونږ
دَ چارپاي په شان وګنړلي شولو:
۴ او ستا په سترګو کښ ګنده: ۴ اي څيرونکي دَ څان خپل په
غصّي کښ: ستا دَپارَ به زمکه خالي کړي شي: او يا به کمر له خپل
څاي نه وخوځولي شي:
۵ ۵ هو دَ شريرانو نور به مړ شي: او دَدوي دَ اور لمبه به
۶ رڼرا و نه کړي: ۶ رڼرا به دَده په خيمي کښ تياره شي: او دَده ډيوه
۷ به پاس دده مړه شي: ۷ دَده دَ قوّت قدمونه به لنډ کړي شي: او
۸ دده مصلحت به ئي وپرزوي: ۸ څکه چه دَي دده پښو په دام کښ
۹ اچولي دي: نو دَي به جال ته ور روان شي: ۹ لومه او دَده ښنګري
۱۰ ونيسي: او زندئِ به ئي ټينګ کړي: ۱۰ دده دَپارَ رسئِ په زمکه کښ
۱۱ پټي شوي دي: او کړکومه دده په لاري کښ: ۱۱ هيبتونه به ئي له
۱۲ هره لوري ووېروي: او دَده دَ پښو څخنه به ئي ښکار کوي: ۱۲ دده قوّت
۱۳ به وږي وي: او بدحالي به دده په څنګ کښ تياروي: ۱۳ دده دَجبي
اندامونه به وخوري: او دَ مرګ مشري به دَده اندامونه وخوري ✣
۱۴ ۱۴ دي به له خپلي خيمي نه چه په کښ ئي اعتماد وه ويستلي شي:
۱۵ او دَ دهشتونو بادشاه ته به ور روان کړي شي: ۱۵ دده په خيمي کښ
به هغه اوسي چه دَ هغه نه وي: دده په ميشتوګنه به ګوګړ
۱۶ ولوستلي شي: ۱۶ له لاندي به دده ولبي وچي شي: او له پاس به
۱۷ ئي ښاخونه پرېکړي شي: ۱۷ دَده ياد به له زمکي ورک شي: او دَ بازار

په مخ به دده نوم نه وِي: ۱۸ له رڼا به تياري ته تيل وهلي شِي: او ۱۸
له آبادِي به وشړلي شِي: ۱۹ دَ خپلو خلقو په منځ کښ به اولاد ۱۹
او نمسِي نه لرِي: دده په مکانونو کښ به ژوندي سړی نه وِي:
۲۰ وروستني به دده په ورځي تعجّب کوِي: او وړاندني به لړزيږي: ۲۰
۲۱ په تحقيق سره دَ بدکارانو دا ځايونه دِي: او دا ځاي دَ هغه ۲۱
دي چه الله نه پيژنِي ❊

# نولسم باب

۱ نو ايّوب ځواب ورکړ و ئي ويل: ۲ چه ترڅو به ځما ځان په عذاب ۱ ۲
کوئِ: او په خبرو به مِ ميده ميده کوئِ: ۳ دا لسم وار دَي چه ۳
تاسي مِ پښېمانه کوئِ: تاسي په دي نه شرميږئِ چه ما پرېشانه کوئِ:
۴ ما ومنله چه زه له حق نه گمراه شوي يم: نو ځما گمراهِي به په ۴
ما قراره شِي: ۵ نو که تاسي په حق سره په ما باندِ کبر کوئِ: او ځما ۵
عار په ما ثابت کرئِ: ۶ نو پوه شئِ چه الله زه کوږ کړي يم: او خپل ۶
جال را باندِ پيچلي دِي: ۷ گوره زه له ظلم نه ناري کوم او ځواب نه راکيږي: ۷
زه دَ مدد دَ پاره چغي کوم او حکم نشته: ۸ هغه ځما لار کېر کړي ده ۸
چه زه تيريدلي نه شم: او ځما په لارو ئي تياره اچولي ده: ۹ ده ځما جلال ۹
را نه لري کړي دَي: او ځما دَ سر تاج ئي اخستلي دي: ۱۰ له هره جهت ۱۰
ئي و نړولم نو زه لاړم: او ځما اميد ئي دَ ونې په شان وکيښ ❊
۱۱ او خپل غضب ئي په ما باندِ گرم کړ: او دَ خپلو دښمنانو په شان ۱۱
ئي وگڼلم: ۱۲ دده فوځونه يوځاي سره راغلل او خپلي لاري په ما باندِ ۱۲
تياري کړي: او ځما دَ خيمي په گرداگرد ديره کيږي: ۱۳ ځما ورونړه ئي را نه ۱۳
لري کړل: او پيژاندگلوي مِ را نه وگرزيدل: ۱۴ ځما خويشانو پرېښودلم: ۱۴
او هغوي چه زه ئي پيژاندلم هير ئي کړم: ۱۵ ځما دَ کور ميلمانو او ځما ۱۵
وينځو بيگانه وگڼلم: دَ دوي په سترگو کښ بيگانه وگرزيدلم: ۱۶ ما خپل ۱۶
مريي را وباله او ځواب ئي را نه کړ: په خپلي خولي مِ زارِي ورنه وکړه:

١٧ ١٧ ځما اسویلي ځما دَ ښځې په نزد زښت دي: او ځما دَ کلمو دَ زامنو په
١٨ نزد ځما زاري: ١٨ وروکي مِ هم سپک ګڼي: هرکله چه ولاړ شم
١٩ خبري راپوري کوي: ١٩ ځما ټولو آشنایانو مکروه وګڼلم: او هغوي
٢٠ چه محبّت مِ ور سره کاوه رانه واوښتل: ٢٠ ځما هډوکي ځما په
ځرمن او ځما په غوښه پوري ونښتل: او دَ خپلو غاښونو له پوست
٢١ سره خلاص شوي یم: ٢١ تاسو په ما باندِ مهرباني وکړئ مهرباني
وکړئ اي دوستانو ځما: ځکه چه لاس دَ الله زه مسه کړي یم ÷
٢٢ ٢٢ تاسي مِ ولي دَ الله په شان شړئ: او ځما له غوښو نه ماړه
نه یي :
٢٣ ٢٣ کاشکي چه اوس ځما خبري ولیکلي شوي: اي کاشکي چه
٢٤ په کتاب کښ درج شولي: ٢٤ او دَ اوسپني او دَ زیړو په قلم په
٢٥ پرښه کښ وکنودلي شوي تر ابدَ پوري: ٢٥ لیکن زه عالم یم چه ځما
فدیه کونکي ژوندي دي: او هغه آخر به په زمکي کښ ودریږي ÷
٢٦ ٢٦ او پس له هغه چه دا پوست ځما هسي فنا شوي وي: نو بهر له
٢٧ بشر خپل نه به الله خبر کړم: ٢٧ هغه چه زه يي دَ خپل ځان دپاره
وبینم: او ځما سترګي يي ویني نه بل څوک: دغه نه مِ پښتورګي په
٢٨ کوګل کښ فنا کیږي: ٢٨ که تاسي وایئ چه مونږ به يي څرنګ وشړو:
٢٩ او اصلي خبره ځما دننه مندله کیږي: ٢٩ په خپلو ځانونو له توري له
مخه وویریږي: ځکه چه غصّه دَ توري له ګناهونو ده: تاچه تاسي
پوه شئ چه عدالت خو شته ÷

## شلم باب

١ ٢ ١ نو صوفر نعماتي ځواب ورکړو يي ویل: ٢ چه ځما اندیښني ما ته
٣ ځواب راکوي: او دي دَپارَ په ما کښ جوش کوي: ٣ ځما دَ ملامتیا
پیغور اورم: او روح ځما له فهم نه ځواب راکوي:
٤ ٤ ته له قدیم نه په دي خبر يي څه ؟ له هغي زماني نه

چه انسان په زمکې باندِ کېښودلې شه: ٥ چه دَ شریرانو دَ خوښۍ آواز ٥
نژدې دَي: او خوشحالي دَ فاجر دَ یوې لحظې دَه: ٦ اګر که تر آسمانو ٦
دَ هغه بلندي ورسېده: او دَده سر په اوريځ ولګېده: ٧ نو هم لکه ٧
دده غلې تـــرابده به هلاکې شي: هغوي چه دي ئې لیدلي دي
و به وايي چه هغه چرته دي؟ ٨ هغه به لکه دَ خوب لیدنه والوزي ٨
او مونده به نه شي: او دَ شپې دَ خیال په شان به وشړلې شي:
٩ او سترګې چه پرې کتل ئې: بیا به لیدل پرې و نه کړي: او بیا به ٩
خپل مکان و نه ویني: ١٠ دده زامن به دَ خوارانو خوشامد کوي: او دده ١٠
لاسونه دَ هغو دولت وروګرزوي: ١١ دَ هغه هډوکې له ځوانۍ ډک دي ١١
او له ده سره به په خاورو کښې څملي: ١٢ اګر که دَده په خوله کښې ١٢
شرارت خوږ ولګېده: او تر خپلې ژبې لاندې ئې پټ کړ: ١٣ ده په هغه ١٣
شفقّت وکړ او نه ئې پرېږدي: بلکه دَ خپل ستوني په منځ کښې ئې
بند کړ: ١٤ نو ډوډۍ به دده په کُلمو کښې وګرزي: ترخه دَ منګورانو ١٤
دده په ګېډې کښې: ١٥ هغه دولت ونغرد بیا به ئې قې کړي: الله ١٥
به ئې دَ هغه له ګېډې و شړي: ١٦ هغه به دَ منګورانو زهر وروي ١٦
او دَ تور مار ژبه به ئې مړ کړي: ١٧ هغه به والې نه ویني: بهېدنکې ١٧
رودونه دَ ګبینه او دَ پیو: ١٨ د هـــغه خوارې به وروګرزوي ١٨
او و به ئې نه نغري: لکه مال تر ګټې لاندې او خوشحال به نه شي:
١٩ ځکه چه ده مسکنان بنکېمنډل او پرې ئې ښودل: او کورې چه ١٩
په زور اخستلې دَي جوړ کړې نه وَه: ٢٠ دې دَپارَ هغه په خپلې ٢٠
ګېډې کښې قناعت و نه پېژانه: دې به په خپل خوښ کړي بچ نه
کړي: ٢١ دده له خوراک نه هیڅ پاتې نه وَو: دې دَپارَ به دده خیر ٢١
مدام نه وي: ٢٢ سره له ډېره وس به هغه په تنګسیه کښې وي: ٢٢
په ده باندِ به دَ هر کمبخت لاس راشي: ٢٣ او داسې به وشي هرکله ٢٣
چه دده ګېډه به ډکولو وي: نو الله به دَ خپل غضب ګرمي ورباندِ

واسترِي: او چه دي خوراک کوِي ورباندِ وبه يُ اوروِي:
۲۴ ۲۴ هغه دَ اوسپني له وسلي وتښتي: دَ زيړو لينده به يُ
۲۵ وشيري: ۲۵ دي به يُ وشکوِي او له ګيډي به يُ ووزي: دده له تريخي
۲۶ به ځليدونکي څوکه را وخيژي: په ده باندي دهشتونه: ۲۶ ټوله تياره
دده خزانو ته پټه شوي ده:
هغه اور چه دم ورکړي شوي نه دَي وبه يُ خوري:
دي به هغه چه دده په خيمي کښ پاتي دِي وخوري: ۲۷ آسمانونه
۲۸ به دده ګناه ښکاره کړي: او زمکه به په ده ورپورته شي: ۲۸ دَ هغه
دَ کور غلّه به واخستلي شي:
دَده دَ غضب په ورځ به وبهيږي:
دَ شرير انسان نصيب دَ الله له نزده دا دي: او ميراث چه له
قادر نه ورته مقرّر دي ❊

# يو ويشتم باب

۱ ۲ ۱ بيا ايوّب ځواب ورکړ وئ ويل ۲ چه تاسي ځما قول په اوريدلو سره
۳ واوريِ: او دا دِ تاسو ته تسلّي شي: ۳ ځما زغم وکړئ چه وايم: او ځما له
۴ خبرو پس ټوقي کوئِ: ۴ نو زه له انسانَ شکايت کوم څه؟ او که داسي
۵ وي نو ولي به مِ روح نه تنګيده: ۵ را ته متوجّه شئ او تعجّب وکړئ:
۶ لاس په خولي کيږدئِ: ۶ هرکله چه زه ياد کوم نو ترسيږم: او ځان مِ
۷ لرزه ونيسي: ۷ ځله شريران ژوندي دِي: او زاړه کيږي هو په قوّت
۸ سره زوراور کيږي: ۸ دَ دوي نسل دَ دوي د وراندِ له دوي سره
۹ قايم وِي: او دَ دوي اولاد دَدوي په سترګو کښ: ۹ دَ دوي کورونه
۱۰ له ويري په سلامت دِي: او همسا دَ الله په دوی نشته: ۱۰ غوَيي
يُ بريالي او نه خطا کيږي: دَدوي غوا بلاربي کيږي او نه يُ پريوزي:
۱۱ ۱۱ دوي خپل شيرخواره دَ رمي په شان استوِي او هلکان يُ ګډيږي:
۱۲ ۱۲ هغوي ډول او ستار اخلي: او په آواز دَ نوريئِ خوښي کوِي:

۱۳ دَ دوي ورځي په خير تيريږي: په يوي لحظي کښ دوزخ ته کوزيږي: ۱۳
۱۴ نو هم دوي الله ته وايي چه ته رانه لري شه: او ستا دَ لارو ۱۴
په شناخت نه خوښيږو: ۱۵ قادر څه شي دَي چه مونږ ئي عبادت ۱۵
وکړو: او څه فائده به مو وي که زاري ورته وکړو:
۱۶ گوره دَ دوي په لاس کښ دَ دوي خير نشته: له ما نه دِ ۱۶
مصلحت دَ شريرانو لري دَي: ۱۷ څوځله ډيوه دَ شريرانو مړه کيږي: او ۱۷
دَ دوي هلاکت په دوي باندِ راځي: الله هغو ته په خپل غضب کښ
دردونه وويشي: ۱۸ او يا به دوي دَ باد دَ وړاندِ لکه پروړه وي: او يا ۱۸
لکه خس چه گرد باد ئي والوزوي: ۱۹ الله به دده گناه دَ ده زامنو ته ۱۹
خزانه کړي: تا چه دَ هغو ځان ته بدله ورکړي او دي پوه شي: ۲۰ دَ ۲۰
هغه سترگي به خپل هلاکت ويني: او له گرمي دَ قادره به وڅښي:
۲۱ نو ورپسي دَ هغه په خپل کور کښ څه خوښي ده: هرکله چه دَ ده ۲۱
دَ مياشتو شمار پرې کيږي:
۲۲ الله ته به څوک معرفت ورزده کړي څه؟ او دي په بلندانو ۲۲
حکم کوي: ۲۳ دا په خپل عينِ طاقت کښ مړ کيږي: ټول خاطر جمعه ۲۳
او برقرار دي: ۲۴ دَ هغه پڼغالي له پيو ډک دي: او هډوکي ئي له ۲۴
تري نه پُر دي: ۲۵ او بل به په تلخ ځاني مړ شي: او خير به نه وڅکي: ۲۵
۲۶ دوي دواړه به سره په خاورو کښ څملي: او چينجي به ئي پټ کړي: ۲۶
۲۷ گوره زه ستا فکرونه پيژنم: او هغو نيتونه چه تاسي ۲۷
ظلم را باندِ کوئ: ۲۸ ځکه چه تاسي وائِ چه دَ شاه کور چرته دَي: ۲۸
او خيمه دَ ميشتوگني دَ شريرانو چرته ده: ۲۹ تاسي دَ هغو دَ لاري ۲۹
له تلونکو پوښتنه کړي نه ده: او تاسي دَ دوي په دليلونو خبر نه شوئ
څه؟
۳۰ چه شرير دَ هلاکت دَ ورځي دپاره نيولی شوی دَي: ۳۰
دَ دوي عذاب دَ ورځي دپاره بيولي شوني دي: ۳۱ څوک به دده لار دده ۳۱

٣٢ مخ ته ښکاره کړي: او څوک به ده ته دَ عمل بدله ورکړي: ٣٢ هغه
٣٣ به قبرونو ته بیولې شي: او په گورستان به بيدارِي کوي: ٣٣ دَ خوړي
لوټي به ده لره خوږي وِي: او ټول سړي به په وروستو وښکوي: او
٣٤ وړاندِ دده هومره چه شمار ئي نه وِي: ٣٤ نو تاسي ولي باطله تسلي
راکوئِ: او ستاسي په ځوابونو کښ خيانت باقِي دَي *

# دوه ويشتم باب

٢ ١ نو اليفاز تيماني ځواب ورکړ وئي ويل: ٢ چه الله ته انسان فائده
٣ ورکوِي څه؟ بلکه دانا خپل ځان ته فائده ورکوِي: ٣ هرکله چه ته
صادق شوي نو قادر ته څه خوښي شته:
يا څه گټه ئي شته چه خپلي لاري قايمي کړي څه؟
٤ ٤ هغه ستا دَ ويري په سبب تا گڼوِي څه؟ يا به له تا سره عدالتگاه
٥ نه ننوزي څه؟ ٥ ستا شرارت لوي نه دَي څه؟ او ستا بدکارِي
٦ بي اندازه نه دِي څه؟ ٦ ځکه چه تا به له خپلَ وروره بي سببَ
٧ گرو اخستلي وِي: او دَ برمندو جامي به دِ شوکولي وِي: ٧ او به دِ په
٨ تږي ځنبلي نه وِي: او له وږي به دِ ډوډئِ منعَ کړي وي: ٨ ليکن
دَ قوّت خاوند چه دي هغه لره زمکه وه: او روئداره په کښ ساکن
٩ وه: ٩ کونډي دِ خالِي استولي دِي: او دَ يتيمانو بازوگان ميده شوِي
١٠ دِي: ١٠ دي دَپارَ ستا په گردا گرد لومي دِي:
١١ او ناگهانی هول دِ ولوزوِي: ١١ يا تياره چه ته به نه وبني: او
١٢ دَ اوبو نور به دِ پټ کړِي: ١٢ گوره الله په بلنديو دَ آسمانو کښ نه دي
څه؟
١٣ او سر دَ ستورو وگوره چه څومره لوي دِي: ١٣ نو ته وايي چه
الله څرنګ پوهيږِي: دَ تورتم له وروستو حکم کولي شي څه؟
١٤ ١٤ اوريځ ده لره پرده ده نو دي ليدلي نه شي:
او په دائري دَ آسمانو کښ گرزي:

۱۵ ته وړاندنیٔ لار ساتي: چه دَ بدکاریٔ سړو پایمال کړي ده؟ ۱۶ هغوي ۱۵ ۱۶
چه له وقتَ وړاندِ قبض کړي شول: چه رود دَ دوي په بنیادونو
توي شه: ۱۷ هغه چه الله ته ئي وویل چه زمونږ نه لري شه: او قادر به ۱۷
څمونږ لره څه وکړي: ۱۸ او ده ددوي کورونه په خیر ډک کړل له مانه ۱۸
مشورت دَ شریرانو لری دَي: ۱۹ صادقان به کوري او خوشحال به شي: ۱۹
او پاکان په دوي ټوقي وهي وايي: ۲۰ چه څمونږ مقابله کونکي بیدیا شه: ۲۰
او باقي دَدوي اور وخوړل:
۲۱ ته ورسره اشنا شه او سلامت اوسه: په دي کښ ۲۱
خیر در رسیږي: ۲۲ دده له خولي شریعت قبول کړه: او دده کلام په ۲۲
خپل زړه کښ کیږده: ۲۳ که ته قادر ته رجوع وکړي نو به بنا کړي ۲۳
شي: که ته له خپلي خیمي ظلم لري کړي: ۲۴ نو دَ زرو سله به په ۲۴
خاورو واچوي: او د اوفیر سره زر دَ ویالو دَ کتهکیو په مینځ کښ ÷
۲۵ نو به قادر ستا سله وِي: او کردن بها زر تا لره: ۲۶ ځکه چه ته ۲۵ ۲۶
به هغه وقت په قادر لذّت اخلي: او الله ته به مخ خپل ورپورته
کړي: ۲۷ ته به هغه ته دعا وکړي او دي به دِ واوري: او ته به ۲۷
نذرونه خپل ادا کړي: ۲۸ نو چه ته دَ یو کار اراده وکړي هغه به ۲۸
تا ته پوره کړي شِي: او ستا په لارو به نور وځلیږي: ۲۹ هرکله چه ۲۹
ته پرزولي شوي یي ته به ووایي چه پورته کیدل شته دي: او دي
به تیټي کړي سترګي وال خلاص کړي: ۳۰ ناپاک ته به هم نجات ورکړي: ۳۰
او هغه به ستا دَ لاسونو په پاکي نجات موږي ÷

## درویشتم باب

۱ نو ایوّب ځواب ورکړ وئي ویل: ۲ چه نن ورځ څما شکایت تریخ ۱ ۲
دَي: څما له آهونو څما وهنه زیاتَ درنه ده: ۳ څوک به مانه راکړي ۳
چه زه ئي موم: او دَ هغه تخت ته وراغلي: ۴ او دده دَ وړاندي ۴
به مِې دعوي په ښه شان سره وکړه: او خپله خوله به مِې په حجتونو

۵ ډکه کړه:۵ نو ما به هغه خبري چه ځواب بري کوم وپېژاندلي: او
۶ هغه چه راته وايي پري وبه پوهيدلم:۶ هغه به له ما سره په
ډیر توت وجګړیږي څه ؟
۷ هیڅ کله نه لیکن هغه به ماته توجه کړي وه:۷ هلته به
راستباز ورسره بحث کړي وه: او زه به ترابده له خپل قاضي نه
۸ خلاص شوي وم:۸ ګوره زه وړاندې ځم او هغه هلته نشته: او وروستو
۹ ته نو هم پري آګاه نه شوم:۹ کینړ لاس ته هلته کښ دده کار دَي
نه ئي وینم: هغه ښي لاس ته پټیږي زه ئي نه وینم *
۱۰ ۱۰ لیکن دي ځما لاري پیژني: که دي م وآزمايي دَ سرو زرو په
۱۱ شان به وځیژم:۱۱ دَده په قدمونه ځما پښي نیولي دي: ما دَده لار
۱۲ وساتله او ورنه ګوښي نه شوم:۱۲ دَده دَ شونډو له حکم ونه ګرزیدم
۱۳ ځما له فرضو نه م دَده دَ خولي خبري ډیره ذخیره کړه:۱۳ لیکن دَي
خو یګانه دَي څوک به ئي راوګرزوي: هرڅه چه دَده ځان غواړي هغه
۱۴ کوي:۱۴ ځکه چه دَي به ما باندي مقرر کړي پوره کوي: او دَ دغو
۱۵ په شان ډیر ورځنه دي:۱۵ دي دپارَ زه دده دَ وړاندي لړزیږم: چه
۱۶ زه فکر وکړم نو ور نه ترسیږم:۱۶ ځکه چه الله ځما زړه ډیر ضعیف
۱۷ کړي دي: او قادر لړزولي یم:۱۷ ځکه چه زه له تیاري وړاندې پریکړي
نه شوم: او دي ځما له مخ نه تورتم پټ نه کړ *

# څلیروشتم باب

۱ ۱ هر کله چه زماني له قادر نه پټي نه دي: نو ولي دده عارفان دده
۲ ورځ نه ویني:۲ دوي حدونه نقل کوي: او کنډک په زور بیايي او
۳ څروي ئي:۳ دي دَ یتیمانو خره شړي: او دَ کونډو غوايي ګرو کوي:
۴ ۴ مسکینان له لاري اړوي: مسکینان دَ زمکي ټول سره پټیږي:
۵ ۵ ګوره دوي لکه ګورخره په بیابان کښ:
دوي خپلي چاري ته وزي دوي وقتي دَډوډي دپارَ پاڅي:

صحرا دوی لره او دوی زامنو لره ډوډئ ده:۶ په پټي کښ خپل ۶
وابنه ریبي:او دَ شریرانو انګور انړوي:۷ دوی برمنه شپې تیروي: ۷
او په یخني کښ جامي نه لري:۸ دَ غرونو له شیبي نه لانوده ۸
کیږي:او چه پناه نه لري نو په ګمرونو پوري نښلي:
۹ هغوِ شنه چه یتیمان له تیو شوکوي:او له مسکنانو ۹
ګږو اخلي:۱۰ برمنه بي پښوني دروي:او وږي ګیډي وړي:۱۱ دوی دَ ۱۱
هغوي دَ دیوالونو دننه تیل باسي:دَ هغوي چرخشتونه مږي او تږي
اوسي:۱۲ سړي له ډکه ښهرَ هاي هو کوي:او ځانونه دَ زخمیانو ۱۲
فریادونه کوي:او الله بي دیني نه ګنړي:
۱۳ او دغه به له هغو وِي چه یاغي کیږي په رڼا:دده لار ۱۳
نه پیژني:او دَده په لارو کښ درنګ نه کوي:۱۴ وژلونکي له رڼا ۱۴
سره پورته کیږي مسکین او خوار وژني:او په شپې کښ داسي وِي
لکه غل:۱۵ دَ زاني سترګي دَ نماښام انتظار کوي وايي چه هیڅ سترګي ۱۵
به مِ نه ویني:نو په خپل مخ پرده واچوي:۱۶ په تیاري کښ کورونه ۱۶
سوري کوي:
په ورځ کښ ورونه په خپلو ځانونو بند کړي:رڼا نه پیژني:
۱۷ ځکه چه په دوي باندِ صباح او سوري دَ مرګ برابر دِي:ځکه ۱۷
چه دوي دَ مرګ دَ سوري هولونه پیژني:
۱۸ هغه دَ اوبو په مخ ګړندي دي:دَ دوی حصه په زمکه ۱۸
کښ ملعونه ده:دَ تاکستان لاري ته توجّه نه کوي:۱۹ وچ کالي اوګرمي ۱۹
دَ واوري اوبو کنړ کوي:هم هسي دوزخ هغو سړو چه خطا کوي:
۲۰ هغه به رحِم هیر کړي چینجي به مزي پري وکړي:بیا به ۲۰
په یاد راوړ نه شي:بدي به لکه ونه ماته شي:۲۱ دي هغه ۲۱
شنډه چه نه زیږوي په عذاب کوي:او له کونډي سره نیکي نه کوي:
۲۲ هغه زوراور په خپل قوّت نیسي:چه پورته شي نو دده په ژوند ۲۲

۲۲ هیڅوک په امان نه وي:۲۳ الله ده نه آسودګي ورکړي نو دي پر توکل
۲۴ وکړي: لیکن دده سترګي دَ هغو په لارو دي:۲۴ لږ څه پورته شي
بیا نه وي: او کمېږي لکه ټول لري کېږي: او لکه دَ وږي سرونه هسي
۲۵ پرېکېږي:۲۵ او که داسي نه وي نو څوک به مي دروغژن کړي: او کلام
به مي ناڅيز وګرزوي ⁕

## پنځه ويشتم باب

۲ ۱ نو بلدد شوحي څواب ورکړ وئي ويل:۲ بادشاهي او هيبت دَده
۳ ځنه دي: او دي په بلنديو کښ دَ سلامتي صانع دي:۳ دَده دَ
لښکرو څه شمار شته څه؟ او په چا باندِ دده نور نه ځلېږي؟
۴ ۴ نو دَ الله په نزد به انسان څرنګ صادق وګڼلي: او زېږيدلي دَ
۵ ښځي به څرنګ پاک وګڼلي شي:۵ کوره سپوږمۍ هم خپله رڼا نه کوي:
او ستوري دده په سترګو کښ صاف نه دي:
۶ ۶ نو څومره زيات انسان چه چينجي دي: او ابن آدم چه چينجي دي ⁕

## شپږ ويشتم باب

۲ ۱ نو ايوب څواب ورکړ وئي ويل:۲ چه تا څرنګ دَ هغه مددکاري
وکړه چه قوّت ئي نه لاره؟ او هغه بازو دِ خلاص کړ چه زور ئي
۳ نه لاره؟ ۳ تا په هغه څرنګ اشارت وکړ چه حکمت ئي نه لاره؟
۴ او ډېر فهم دِ ظاهر کړ؟ ۴ دَ چا دَپاره دِ خبري ښکاره کړي؟ او دَ
۵ چا دم دي چه له تا ووت؟ ۵ زبردست مړي دَ اوبو دَ لاندي
لړزېږي: او دَ هغو اوسيدونکي ئي:
۶ ۶ دوزخ دَ هغه دَ وړاندِ برښد دي: او هلاکت پټوني نه
۷ لري:۷ شمال په خالي ځاي اوږدوي: او زمکه په نه څيز اوېزانه کوي:
۸ ۸ دي په خپلو ګڼو اوريځو کښ اوبه جمع کوي: او تر هغو دَلاندِ اوريځ
نه څوي:
۹ ۹ دي دَ خپل تخت مخ پټوي:

اوريځ وربانډِ وغورږي:
۱۰ ۱۰ ده په مخ دَ اوبو حد وټاړه:
۱۱ ترهغه چه رڼا له تیارې سره پیوسته ده: ۱۱ دَ آسمانو
ستني ولړزیدي:
۱۲ او دَده له تنبیه ترسیږي: ۱۲ دي په خپل قوّت دریاب
خوځوي:
۱۳ او په خپل فهم رهب میده کوي: ۱۳ دده په دم سره آسمانونه
۱۴ رڼا دِي: او دده لاسونو تښتیدونکي مار سوري کړي دي: ۱۴ کوره
دا دده دَ لارو طرفونه دِي:
او ځرنګ موږ دَ هغه نرم کلام ورنه اورو:
لیکن دده دَ جبروت رعد څوک پیژني ✤

# اووېشتم باب

۱ ۲ او ایوّب بیا په خپل مثال ګویا شه وئي ویل: ۲ هغه الله ژوندي
دَي چه زما حق ئي یووړ: او هغه قادر چه زما ځان ئي تریخ کړي
۳ دَي: ۳ چه ترهغه پوري زما دم په ما کښ دي:
۴ او روح دَ الله زما په سږموکښ: ۴ زما شونډي به دَ
بدي خبري ونه کړي: او ژبه به مِ دَ دروغو تلفظ ونه کړي ✤
۵ ۵ هسي دِ رانه ونه شي چه زه مو صادق وګڼم:
څوچه زه روح وسپارم خپل کمال به رانه لرې نه کړم:
۶ ۶ زه به خپل صداقت ټینګ ونیسم او سُست به ئي نه کړم:
زما زړه به دَ یوي ورځي زما له ورځو ملامت ونه کړي ✤
۷ ۷ زما دښمن دِ دَ شریر په شان شي: او زما کینه کښان لکه بدکار:
۸ ۸ ځکه چه دَ فاجر څه امید دي اګرکه ګټه کوي: هرګاه
۹ چه الله دَده ځان رانیسي: ۹ نو الله به دَ هغه ناره واوري څه؟
۱۰ هرکله چه تنګي پرِ راشي: ۱۰ هغه به په قادر لذّت واخلي څه؟

او الله به په هر وقت کښې و بولي څه

۱۱ زه به دِ په لاس دَ الله پوه کړم
هغه چه دَ قادر څخه دِي زه به
۱۲ ئې پټ نه کړم ۱۲ کورئ تاسي ټول
لیدلي دي
نو تاسي ولې په بطلان سره
۱۳ بطلان کوئِ ۱۳ دَ شریر انسان
نصیب له الله نه داده
او میراث دَ ظالمانو چه له قادر
۱۴ ئې مومي ۱۴ که دَ هغه زامن ډیر
وِي دَ توري دَپارَ دِي
او ده اولاد به په ډوډئِ ډک
نه شِي
۱۵ ۱۵ ده باقیه به په مرو ښخ
کړي شِي
او ده کونډې به ونه ژاړِي
۱۶ ۱۶ اګر که سپین زر دَ خاورو په
شان خزانه کړي
او جامې لکه خټې تیاري کړي
۱۷ ۱۷ دي به ئې تیاري کړي او صادق
به ئې واغوندي
او بې ګناه به سپین زر ووېشي
۱۸ ۱۸ هغه به خپل کور لکه غنزیه
جوړ کړي
او یا لکه جونګړه چه کښې جوړه
کړي وِي
۱۹ ۱۹ هغه به دولتمند څملي لیکن
بیا به داسي نه شِي خپلي سترګې
پرانزي او نه به وِي
۲۰ ۲۰ هغه هولونه به ئې ونیسي لکه
اوبه دَ شپې ئې سیلئ وړي
۲۱ ۲۱ شرقي باد ئې واخلي نو دروي
۲۲ او له ځاي نه ئې وغورزوي ۲۲ الله
به ئې پرې واچوي او مشقت به
پرې و نه کړي
۲۳ ۲۳ ده له لاس به په تیښته
۲۴ وتښتي ۲۴ په ده به لاسونه وټکوي
او ده له ځاي نه به په ده
شپېلکې ووهي ÷

## اته ویشتم باب

۱ ۱ په تحقیق سره دَ سپینو زرو
کان شته
او سرو زرو لره ځاي وِي چرته
چه ئې سوچه کوي
۲ ۲ اوسپنه له خاورو وړي او
۳ له کاڼو مس ویلې کېږي ۳ تیاري
نه ئې حد جوړوي او تر نهایته
دَ هر لوري تلاش کوي
کاڼي دَ تیاري او سورې دَ مرګ

۴ ۴ هغه بو غار کنود چه له اوسیدونکو
لري دي
هغه چه خپلي پښي هېروي له
سړيو لري په ځوړند کيدلو سره
۵ ورځوړند کيږي ۵ هغه زمکه چه
ډوډيۍ ورنه راوزي
دَ هغي تله اړوله کيږي لکه په اور
سره
۶ ۶ دَ هغي کاڼي دَ نيلمو ځاي دَي
او په هغي کښ دَ سرو زرو خاوري
۷ دِي ۷ يوه لار چه ټجير ئي نه پېژني
او دَ باښې سترګي ئي نه وينې
۸ ۸ او دَ درندګانو منګلو پايماله کړي
نه دِي : او تند زمري پري تلي نه دي
۹ ۹ هغه بکر کاڼي ته لاسونه
اوږدوي
او غرونه له بيخه اړوي
۱۰ ۱۰ هغه په ږښو کښ کاريزونه کني
او دده سترګي ګران بها څيزونه
وينې
۱۱ ۱۱ دي رودونه تړي چه توي نه
شي
او پټ څيزونه رڼا ته ښکاره کوي
۱۲ ۱۲ ليکن حکمت چرته موندلي شي
او دَ پوهي ځاي چرته دَي ؟

۱۳ ۱۳ سړي دَ هغه قيمت نه پېژني
او دَ ژوندو په زمکه کښ نه موندۀ
کيږي
۱۴ ۱۴ ژوره وائي چه دغه په ما کښ
نشته
او قهرِ درياب وائي چه ځما څخه
نشته
۱۵ ۱۵ خالص سره زر دَ هغي په بدل
کښ نه ورکيږي
او سپين زر دَ هغه دَ قيمت دپاره
نه وزن کيږي
۱۶ ۱۶ دَ اوفير په سرو زرو نه تول
کيږي او په قيمتي جزع او په نيلم
۱۷ ۱۷ سره زر او شيشي نه ورسره
برابريږي
او دَ سرو زرو په لوښو نه بدليږي
۱۸ ۱۸ مرجان او بلور نه په ياد کيږي
هو دَ حکمت حاصلول له لعلونو
۱۹ بهتر دَي ۱۹ زير ياقوت دَ کوش
نه ورسره برابر کيږي او نه په خالصو
زرو تول کيږي
۲۰ ۲۰ نو حکمت له کومه راځي او دَ
۲۱ فهم ځاي چرته دَي ۲۱ چه دَ هر
ژوندي له سترګو پټ دَي
او دَ آسمان له مرغانو پټ دَي

۲۲ ۲۲ هلاکت او مرګ وايي چه مونږ دَ
هغه خبره په خپلو غوږونو واوريده
۲۳ ۲۳ الله دَ هغه لار پيژني
او دَي دَ هغه په ځاي عالم دي
۲۴ ۲۴ ځکه چه دي اطرافو دَ زمکي ته ګوري
تر ټولو آسمانونو دَ لاندِ ويني
۲۵ ۲۵ تاچه باد لره وزن جوړ کړي
او اوبه په انداز سره ميچ کړي
۲۶ ۲۶ هرکله چه ده دَ باران دَپارَيو حکم
مقرّر کړ او دَ رعد دَ صاعقو دَپارَيوه طريقه
۲۷ ۲۷ هغه وقت ئې وليد
او بيان ئې کړ
مقرّر ئې کړ او و ئې هم ازمايه
۲۸ ۲۸ او انسان ته ئې وويل ګوره
دَ خداوند ويره هغه حکمت دَي
له شرارت نه لري کيدل فهم

## نه ويشتم باب

۱ ۱ او بيا ايوّب خپل مثال ګويا
۲ ويل ۲ کاشکي چه زه داسي وي
لکه په وړاندنيو مياشتو کښ
په هغو ورځو کښ چه زه په
هغو کښ الله وساتلم
۳ ۳ هغه وقت چه دَده چراغ ځما
په سر روښانه کوله او دَده
په نور سره په تياري کښ تلم
۴ ۴ لکه چه زه دَ خپلي
ځواني په ورځو کښ وم
او دَ الله راز ځما په خيمي وَه
۵ ۵ او بيا قادر له ما سره وَه
او هلکان مِ راته چاپيره وُو
۶ ۶ او خپل قدمونه مِ په شودو
پريولخل
او پرښي ځما دَپاره دَ
تيلو لښتي جارِي کول
۷ ۷ هرکله چه زه به په کِلي کښ
دروازي ته وتلم
او په چارسو کښ به مِ نشستګاه
جوړاوه
۸ ۸ هلکانو به وليدلم پټ به شول
او زاړه به پاڅيدل او وبه دريدل
۹ ۹ او غټان به له خبرو ودريدل
وخپل لاسونه ئې په خپلو خولو
ږدل
۱۰ ۱۰ دَ اشرافو آواز به چُپ کيده
او ژبي به ئې په تالو کښ ونښتي
۱۱ ۱۱ هرکله چه غوږونو به مِ واوريدل
ما ته به ئې خوښي غوښتله
او سترګو به چه وليدلم شاهدِي
به ئې راکوله

۱۲ ۱۲ خکه چه ما به فریاد کونکي مسکینان
خلاصول
او یتیمان او هغوي چه مددګار
به ئي نه لاړه
۱۳ ۱۳ دَ هلاکیدونکي برکت به په ما
پریوت
او ما به زړه دَ کونډو خوښ
۱۴ خورم کاوه ۱۴ ما صداقت واغوست
او زه ئي پوشیده کړم
خما عدل لکه قبا او لکه پګړئ وه
۱۵ ۱۵ زه ړانده لره سترګي او ګډ لره
پښي وم
۱۶ ۱۶ زه دَ محتاجانو پلار وم
او هغه دعویٰ چه نه به م پیژندله
دریافت به م کاوه
۱۷ ۱۷ ما دَ ظالم ژامي ماتي کړي
او دَ هغه دَ غاښو له مینځ نه م
ښکار کړي راوکیښ
۱۸ ۱۸ نو ما ویل چه زه به په خپلي
خالي کښ روح وسپارم
او دَ سمندل په شان به ورځي
ډیرې کړم
۱۹ ۱۹ خما بیخ به اوبو ته غوړیدلي وي
او شبنم به خما په ښاخونو شپه
تیروي

۲۰ ۲۰ خما جلال به تازه تازه راځمه
باقي وي
او خما لینده به خما په لاس کښ
نوي وي
۲۱ ۲۱ خما به ئي اوریدل او راته به ئي
انتظار کاوه
او خما دَ مصلحت په وقت به
چُپ اوسیدل
۲۲ ۲۲ خما خبري به ئي دوباره نه کولي
او خما خبرې به په دوي ښه لګیدله
۲۳ ۲۳ او دَ باران په شان خما انتظار
ئي کاوه
او خپلي خولي به ئي چینګولي لکه
وروستني باران ته
۲۴ که ما به ورپوري وخندل نو
هم دوي به باور نه کاوه
او خما دَ مخ نور به ئي نه تُرش کاوه
۲۵ ما دَ دوي لار پسنده کوله او سردار
غوندي به کښیناستم
او سکونت به م کاوه لکه بادشاه
په لښکر کښ
لکه چه ویر کونکو ته تسلّي ورکونکي

## دیرشم باب

۱ ۱ لیکن اوس خو په ما باندِ هغوي
چه په ورځو کښ رانه ووړوکي دي

خندا کوي
هغوي چه ما به کرکه کوله چه
ددوي پلرونه له خپلو ګډو له
سپيو سره کړم
۲ دَدوي دَ لاسونو قوّت ماله څه
وُه؟ په دوي کښې زړبهيُ ورکه
۳ شوه ۳ چه په خوارِي او په قحطِي
کښې لاغر وو
ژوَنکي دَ هغي وچي چه په تيارِي
دَ خرابي او دَ ويجاړي کښې ده
۴ ۴ هغوي سارمي او له ډکيو شوکوِي
او دَ کوټ بيخونه يُ ډوډيُ ده -
۵ ۵ هغوي چه له مينځ نه شړلي
شوِي وُو
په دوي به يُ ناري وهلي لکه په
غله پسي
۶ ۶ دَ ډاړ دَ اوسيدلو په څيوړو دارو
خوړو کښې
او دَ خاورو او دَ کمرو په غارونو
۷ کښې ۷ دَ ډکيو په مينځ کښې به يُ
غرغري کولي
او تر جلبنګ دَ لاندِ به يټميدل
۸ ۸ دَ احمق زامن بلکه دَ بي‌نامو
سړو زامن
له زمکي تېل وهلي

۹ ۹ او اوس چه دي زه دَ دوي سندري
شوم
او دَ دوي متل شوم
۱۰ ۱۰ دوي رانه نفرت کوِي له مانه
لري کيږِي
او څما دَ مخ دَ وړاندِ له توکلو نه
نه تم کيږِي
۱۱ ۱۱ څکه چه ده رسئِ پرينبوه او په
ما ئي قهر وکړ
او دوي څما له وړاندِ واګه ويستله
۱۲ ۱۲ لونډان څما په ښي لورِي دريږِي
او څما پښي تېل وهِي
او دَ خپل هلاکت لاري په ما
سازوِي
څما لاري خرابوِي
۱۳ ۱۳ څما په آفت کښې مدد کوِي
له دوي نه مددګار نشته
۱۴ ۱۴ دوي لکه پلن چاودون راځِي
ژماتيدلو دَ لاندِ رغړيږِي
۱۵ ۱۵ په ما باندِ هولونه واوښتل
لکه باد څما نعمت تښتوِي څما
نيکبختي دَ اوريځي په شان تيره
شوه
۱۶ ۱۶ او اوس څما ځان په ما توي
شه

او دَ خوارئِ ورځو ونیولم
۱۷ ۱۷ دَ شپې ځما هډوکي په ما کښې
ریزمریز کیږي
او ژونکي دردونه مِ نه په قرار
کیږي
۱۸ ۱۸ په ډېرې سختې سره مِ پوشاک
بدرنګ شوي دي
ځما دَ قمیص دَ کریوان په شان
ئي تنګ ونیولم
۱۹ ۱۹ ده زه په چیکړ کښې اچولی یم
زه دَ خاورو او دَ ایرو په شان
شوي یم
۲۰ ۲۰ زه تا ته ناري کوم او ته ځواب
نه راکوي
زه ولاړ اوسم او ته ما ته هسي
ګوري
۲۱ ۲۱ ته ځما په لوري جفاکار وګرزیدې
دَ خپل لاس په قدرت مِ ډېروي
۲۲ ۲۲ تا یوورلم په باد دِ سور کړم
او په طوفان مِ ویلي کوي
۲۳ ۲۳ ځکه چه زه پوهیږم چه ته مِ
مرګ ته ور ګرزوي
او دَ هر ژوندي دَ مقرري کور ته
۲۴ ۲۴ په یقین سره په خرابه توده
کښې به لاس اوږد نه کړي
په آفت کښې به فریاد پرِ وشي
۲۵ ۲۵ یا خو ما دَ هغه دپارَه چه ورځ
ئي سخته شوه و نه ژړل څه؟
ځما ځان په مسکینانو غم ونه کړ
څه ؟
۲۶ ۲۶ هرکله چه ما دَ خیر امید کاوه
نو بدي راغله
او ما دَ رڼا انتظار کاوه او تاریکي
راغله
۲۷ ۲۷ ځما کُلمې ایشې او نه بس کیږي
دَ خوارِي ورځې را وړاندِ شوي
۲۸ ۲۸ زه تور کیږم لیکن بي لمرَ
زه په جماعت کښې ودریږم او ناري
۲۹ کوم ۲۹ زه دَ شغالانو ورور
او دوست دَ شترمرغانو یم
۳۰ ۳۰ ځما څرمن له ما نه توره شوه
او ځما هډوکي له ګرمِي نه راکښې
ګرم شول
۳۱ ۳۱ ځما سِناره وېر لره شوه
او شپیلۍ مِ دَ ژړا کونکو دَ آواز
دپارَ *

## یودیرشم باب

۱ ۱ ما له خپلو سترګو سره وعده وکړه
نو پیغلي ته به څرنګ نظر وکړم
۲ ۲ او څه ویشړ دَ الله له پاسه نه او

حصّه دَ قادر له بلنديو
۳ ۳ بدکارانو لره هلاکت او گنهکارانو
لره بدبختي نشته څه ؟
۴ ۴ هغه زما لاري نه گوري څه ؟
او ټول قدمونه مې نه گڼي څه ؟
۵ ۵ که زه له دروغو سره تللي وي
یا مې پښې ټکي ته زغاستلي وي
۶ ۶ نو ما دې دَحق په تلې کښې وتلي
نو الله به زما کمال وپيژني
۷ ۷ که زما قدمونه له لاري گرزيدلي
وي او زړه مې په سترګو پسې
تللي وي
یا عیب مې په ورغو ونښتي وي
۸ ۸ نو زه دې وکرم او بل دې وخوري
او زما حاصل دې وکښلي شي
۹ ۹ که زما زړه په ښځې فريفته شوي
وي
او یا خو زه دَ خپل گونډي په
۱۰ دروازې غلي شوي یم ۱۰ نو زما
ښځه دې دَ نورو مېچن وڅکوي
او نور دې پرې ټيټ شي
۱۱ ۱۱ ځکه چه دا زبونه ده
ا دا داسي بدي ده چه حاکمانو
ته پيش کيږي
۱۲ ۱۲ ځکه دا اور دي چه تر هلاکت پوري

خوړل کوي
او ټول حاصل زما به له بيخه
و باسي
۱۳ ۱۳ که ما دَ خپل مريي يا وينځي حق
غورزولي وي
چه په ما ئې دعوي لرله
۱۴ ۱۴ نو هر کله چه الله ودريږي زه
به څه کوم
او چه بازخواست کوي نو زه به څه
ځواب ورکوم
۱۵ ۱۵ هغه چه په کيډې کښې زما
صانع دَ هغه صانع نه دي څه ؟
او مونږ يوه په رَحِم کښې جوړ نه کړو
څه ؟
۱۶ ۱۶ که ما مسکينان دَ دوي له مراد
منع کړي وي
يا دَ کونډو سترګي مې ورکي کړي وي
۱۷ ۱۷ يا خپله ډوډۍ مې يوازي خوړلي وي
او يتيم ورنه خوړلي نه وي
۱۸ ۱۸ بلکه له هلکتوب نه زما څخه داسې
لوي شوي وي لکه له پلار سره
او دَ خپلي مور له کيډې مې ئې دَ
هغي رهنمائي وکړه
۱۹ ۱۹ که مې څوک د نه پوشاک په سبب
هلاک ليدلي وي

او یا محتاج بي جامي
۲۰ او یا دَ هغه ملا برکت را ته
غوښتلي نه وي
او یا څما دَ کډو په وړکونو تود
شوي نه وي
۲۱ او که ما په یتیم خپل لاس
خوځولي وي
هرکله چه ما په دروازي کښ خپله
مددګاري ولیده
۲۲ نو څما اوږي دِ څما له ولي
پریوزي
او بازو مِ دِ له مَتِ نه مات
شي
۲۳ څکه چه هلاکت دَ الله له لوري
په ما باندِ دَهشت وه
او دده له جلال نه مِ توان نه لاره
۲۴ که ما سره‌زر خپله تکیه کړي
وي
او یا مِ خالصو زرو ته ویلي وي
چه ته مِ توکّل‌کاه یي
۲۵ یا هرکله چه دولت مِ ډیر شه
زه خوشحال شوي وم
څکه چه څما لاس ډیرخه وموندل
۲۶ که ما نمر ته کتلي وي هرکله چه
وځلیده

یا سپوږمۍ ته چه دا په روښنائي
سره تله
۲۷ او زړه مِ پټ فریفته شوي وي
او څما خولي خپل لاس ښکل کړ
۲۸ نو دا هم بدِي ده چه حاکمانو
ته پیش کیږي څکه چه ما به دَ
الله چه پاس دي انکار کړي وي
۲۹ که زه دَ خپل دښمن په بلا
خوشحال شوي وم
او یا چه هغه ته بد ورسیدل
زه خوښ شوم
۳۰ بلکه ما خپل تالو پري نه ښود
چه دَ هغه دَ څان دَ لعنت آرزو
وکړي
۳۱ اګر که څما دَ خیمي خلقو ویلي
نه شول
چه څوک به یو موړي چه دده له
غوښي موړ شوي نه دي
۳۲ بیګانه دَ باندِ شپه نه تیروله
ما دَ مسافر دَ پاره خپلي دروازي
وازي لرلي
۳۳ که ما دَ آدم په شان خپله
تقصیر پوشیده کړي وي
دَ پاره دَ پټولو دَ بدۍ خپلي په‌خپلي
غیږي کښ

۳۴ ۳۴ په دي سبب چه زه له لوي
ټولي نه وويريدلم
يا دَ قبائلو له سپکاوِي نه مِي دِهشت
خوړلي وي
او زه چُپ شولم او له دروازي
نه وتلم
۳۵ ۳۵ کاشکِي چه چا مِ واوريدلي
گوره ځما نښه کاشکِي چه قادر
ما ته ځواب راکړي
او ما څخه هغه کتاب وَي چه ځما
دښمن ليکلي دَي
۳۶ ۳۶ نو به مِ په خپلي اوږي اخستلي
وه
نو به مِ دَ سرتاج کړي وه
ما به هغه دَ خپلو قدمونو په
شمار خبر کړي وه
او زه هغه ته لکه اشراف
نژدي شوي وم
۳۸ ۳۸ که ځما زمکي په ما ناري کړي
وَي
يا دَ هغي ټولو کرکونو ژړلي وَي
۳۹ ۳۹ که ما دَ هغي غله بي رپيو
خوړلي وِي
يا دَ هغي دَ مالکانو ځانونه مِ
مړه کړي وي
۴۰ ۴۰ نو دَ غنمو په بدل کښ دِ اغزي
زرغونه شِي او بدل دَ اوربشو کښ بوټي
دَ ايوّب خبري تمامي شوي *

## دوديرشم باب

۱ ۱ نو دا دري سړي دَ ايوّب له ځواب ورکولو نه تم شول چه هغه په
خپلو سترگو کښ صادق وُه
۲ ۲ نو دَ اليهو زوي دَ برخئيل بوزي چه دَ رام له خيلخانې وُه
غضب گرم شه دَده غضب په ايوّب گرم شه ځکه چه دغه ځان
۳ خپل له الله نه زيات صادق گنړلي وُه ۳ او دَده په دريو دوستانو دده
غضب گرم شه ځکه چه دوي ځواب بيا نه موند نو هم ايوّب ئې گرم
۴ منفرور کړ ۴ او اليهو په خبرو کښ ايوّب ته صبر کاوه ځکه چه
۵ دَدوي ورځي له ده نه ډيري وي ۵ نو هرکله چه اليهو وليد چه دَ
هغو درو سړو په خولو کښ ځواب پاتي نه دَي نو دَده غضب

کړم شه

۶ ۶ نو اليهو زوي دَ برخئيل بوزي
ځواب ورکړ و ئي ويل
چه زه په ورځو کښ وړوکي يم او
تاسي زاړه يئ
دي دَپارَ وېريدم او وېره مِ وکړه
چه تاسي ته خپل راي ځرګند کړم
۷ ۷ ما وويل چه ورځي دِ خبره
وکړي
او کثرت دَ کالونو دِ حکمت ظاهر
کړي
۸ ۸ ليکن په انسان کښ روح دي
او دم دَ قادر دوي ته پوهه ورکوي
۹ ۹ دَ ډيروورځو وال دانايان نه
دي
او نه زاړه په حق پوهيږي
۱۰ ۱۰ دي دَپارَ وايم چه تاسي مِ واورئ
زه به هم خپل راي ظاهر کړم
۱۱ ۱۱ کورئ ما ستاسو خبروته صبر وکړ
ستاسي حجتونو ته غوږونه مِ
ونيول
څو چه تاسي دَ خبرو تفحص کاوه
۱۲ ۱۲ ما په تاسي کښ فکر وکړ
او څوک نه وه چه ايوّب سره ئي
حجت سنلي وي
او تاسو ځنې دَ ده دَ خبري ځواب
نه وه
۱۳ ۱۳ نو تاسي هسي مه وايئ چه موږ
حکمت وموند
الله هغه مغلوب کولي شي نه
انسان
۱۴ ۱۴ نو هغه خپل کلام ما ته ساز
نه کړ
او نه به زه ستاسي په خبرو سره
به ده ردّ وکړم
۱۵ ۱۵ هغوي حيران شول او بيا ئي
ځواب ور نه کړ
له هغوي نه خبره راويستلي شولي
۱۶ ۱۶ نو زه په انتظار کوم ځکه چه
دوي خبري نه کولي
له دي سبب چه دوي ودريدل او
ځواب نه کوي
۱۷ ۱۷ نو زه به هم په خپل وار ځواب
ورکړم
او زه به هم خپل راي ظاهر کړم
۱۸ ۱۸ ځکه چه زه له خبرو ډک يم
ځما باطني روح مِ په تنګ کوي
۱۹ ۱۹ کوره ځما کيډه لکه هغه شراب
چه پرانيلي شوي نه وي

لکه نوي ژي چه په څيريدلو وِي
۲۰ ۲۰ زه به خبره وکړم چه زه دمه
وکړم
شونډي به پرانزم ځواب به وکړم
۲۱ ۲۱ زه به دَ سړي روئداري و نه
کړم
او نه به دَ انسان خوشامدي وکړم
۲۲ ۲۲ څکه چه زه خوشامدي کول
نه پيژنم
اوکه نه ځما صانع به مِ زر ونيسي

## دري ديرشم باب

۱ ۱ ليکن اوس اي ايّوب ځما خبري
واوره او ځما ټولي ويلو ته غوږ
۲ کيږده ۲ گوره ما خپله خوله پرانتله
ځما ژبه ځما په تالو کښ خبره
۳ وکړه ۳ ځما دَ زړه راستي ځما
خبره
او معرفت ځما دَ شونډو به خالصي
خبري وکړي
۴ ۴ روح دَ الله زه جوړ کړم
او دم دَ قادر ژوندي کړم
۵ ۵ که ته توان لري نو ځواب راکړه
ځما دَ وړاندِ دعویٰ ښه سازه کړه
ودريږه

۶ ۶ گوره زه هم دَ الله په ځواي يم
لکه ته
زه هم له خټي را پرې کړي يم
۷ ۷ گوره ځما هيبت به تا نه ووېروي
او ځما دبدبه به په تا درنه نه وي
۸ ۸ په تحقيق سره تا ځما په غوږونو
کښ ووئيل
او ستا دَ خبرو آواز مِ واوريده
۹ ۹ (تا ووئيل) زه پاک بي تقصيره زه
صاف يم بدي نه لرم
۱۰ ۱۰ گوره هغه ما ته دَ عداوت سبب
لټوي
۱۱ ما هغه لره دښمن گڼي ۱۱ هغه
ځما ښپي په کوندي کښ کيښوي
ټولي لاري مِ څاري
۱۲ ۱۲ گوره نه په دي صادق نه يي زه
به دِ ځواب وکړم
څکه چه الله له انسان زيات لوي
دي
۱۳ ۱۳ ته ولي ورسره جگړه کوي
څکه چه دَ دي دَ ټولو کارونو خپلو
ځواب نه ورکوي
۱۴ ۱۴ ليکن الله يو وار خبره کوي
چه په دويم وار ني انسان لحاظ
و نه کړي

۱۵ ۱۵ نو په خوب کښې دَ شپې په رُؤيا
کښې چه درُوند خوب په خلقو
پرېوزي
په څملاستو کښې په بچاوڼې
۱۶ ۱۶ هغه وقت دَ سړو غوږونه پرَنيد
کړي
او دَدوي په تنبيه مُهر ولګوي
۱۷ ۱۷ تاچه انسان له خپل کار نه
واړوي
او کبرجنې له سړي نه پټه کړي
۱۸ ۱۸ تاچه دَ هغه ځان له دوږغلي
منع کړي .
او دَ هغه ژوند له ورکوالي په
وسلي سره
۱۹ ۱۹ هم په درد سره په خپلي بچاوڼې
تنبيه موي
او دائمي جګړه دَده په هډوکو
۲۰ ۲۰ نو دده ژوند له ډوډۍ نفرت کوي
او دَده ځان له ښه خوراک نه
۲۱ ۲۱ نو دده غوښه له ښکار کيدلو
زره شي
او دَده هډوکي چه نه ليدلي کيږي
ښکرکند شي
۲۲ ۲۲ او دَهغه ځان وقبر ته نژدي
شي
او دده ژوند و مړونکو ته
۲۳ ۲۳ که دَ هغه سره فرښته وي يا
ترجومان يو له زرو تاچه انسان
ته راستي دده ورښکاره کړي
۲۴ ۲۴ نو هغه به په دغه مهرباني
وکړي
وايي چه دَ دوږغلي له کوزيدلو آزاد
ئې کړه
ځکه چه ما فديه وموند له
۲۵ ۲۵ دده غوښې به دَ هلک له غوښې
زياتې تازه وي
او دَ ځوانۍ ورځو ته به وګرزي
۲۶ ۲۶ دي به الله ته دُعا وکړي او هغه
به ورنه راضي شي
دي به په خوښۍ سره دَ هغه مخ ويني
نو به انسان ته دده صداقت ورو ګرزوي
۲۷ ۲۷ دَي به دَ سړو په مينځ کښې سرود
غږوي وايي
چه ما خطاً وکړه او راست مِ کوږ کړ
او سزاياب نه شوم
۲۸ ۲۸ ځما ځان دَ دوږغلي له ورتلو نه
په فديې خلاص شه
نو ځما ژوند به نور وويني
۲۹ ۲۹ ګوره دا ټول دوه واره او دري
واره الله په انسان وکړه

۳۶ ۳۶ تاچه دده ځان له ډوغلي را
وګرزوي
تاچه دَ ژوندیو په نور روښانه وِي
۳۱ ۳۱ نو ته غوږ ونیسه اي ايّوبَ
او ځما واوره
ته چُپ شه اوزه به خبرې کوم
۳۲ ۳۲ نو که ستا څه خبره وِي
ځواب راکړه
ته خبره وکړه چه زه ستا دَ صادق
کنړلو اراده وکړم
او که نه ته ځما واوره
چُپ شه زه به حکمت درزده کړم

# څلورديرشم باب

۱ ۱ نو اليهو ځواب وکړ و ئي ويل
۲ ۲ چه تاسي ځما خبري واورئِ اي
دانايانو
او ماته غوږونه ونیسئِ اي عارفانو
۳ ۳ ځکه چه غوږونه خبري آزمايي
لکه چه تالو دَ خوراک خوند اخلي
۴ ۴ تاچه مونږ دَ خپلو ځانونو دَپارَ
حق وآزمايو
او خمونږ په مینځ کښ هغه وپیژنو
چه عمده دَي
۵ ۵ ځکه چه ايّوبَ خو وويل چه
زه صادق يم
او الله ځما حق بستلي دي
۶ ۶ ځما دَ انصافي په وقت دروغژن
وګنړلي شوم
ټهارونه ځما بي شفا دِي بي له
۷ ۷ تقصیر نه ۷ کوم سړي به لکه ايّوب
پیغور لکه اوبه وڅښي
۸ ۸ او دَ بدکارانو سره به یوځاي
وګرزي
او له شریرانو سره تلونکي
۹ ۹ ځکه چه ده ويلي دِي چه انسان
فائده نه موِمي
اګرکه دَ الله په نزد خوښ وِي
۱۰ ۱۰ دي دَپارَ ځما واورئِ اي دَ دانائِي
خاوندانو
هرګز نه چه الله لره شر وِي او
قادر لره بدِي
۱۱ ۱۱ ځکه چه دي انسان ته دَده
عمل بدل ورکوي
او هر سړي ته دَده دَ لاري په
شان ور رسوِي
۱۲ ۱۲ هو په حق سره الله شرارت
نه کوِي
او قادر عدالت نه کږوِي
۱۳ ۱۳ چا په ده زمکي وسپارله ؟
اوچا ټوله آبادِي جوړه کړه

۱۴ ۱۴ که دي خپل زړه په هغه را
وګرزوي
او که خپل روح او دم دَ ځان په لوري
جمع کړي
۱۵ ۱۵ نو ټول واړه بشر به روح وسپاري
او انسان به خاورو ته وګرزي
۱۶ ۱۶ نو که تا لره فهم وي نو دا
واوره
او خما دَ خبرو آواز ته غوږ ونیسه
۱۷ ۱۷ کنړه هغه چه له حق سره دښمني
کوي حکومت به وکړي څه؟
یا لوي صادق به ته شریر ګنړې څه؟
۱۸ ۱۸ یا بادشاه ته به وویل شي چه
اي هلاک کونکي
یا شاهزادګانو ته چه اي شریرانو
۱۹ ۱۹ هغه چه دَ سردارانو دَ مخونو
پروا نه لري
او دولتمند له محتاج معتبر نه ګنړي
چه دا ټول دَده دَلاس کاریګري دَه
۲۰ ۲۰ دوي ناڅاپه مړه کیږي هو په
نیمي شپي کښ
خلق خوځولي کیږي او تیریږي او
زورآور یستلي کیږي نه په لاس
سره
۲۱ ۲۱ چه دده سترګي دَ انسان په
لارو دي
او دَي دَ هغه ټول پلونه ویني
۲۲ ۲۲ نه هیڅ تیاره شته نه دَ مرګ
سوري
چه هلته بدکاران پټ شي
۲۳ ۲۳ ځکه چه دي دَ انسان ملاحظه
یو ساعت نه کوي
تاچه په عدالت کښ الله ته ور
ننوزي
۲۴ ۲۴ دي زوراور بي پوښتني ماتوي
او نور دَدوي په ځاي دروي
۲۵ ۲۵ لیکن دَي دَ هغو کارونه پیژني
او دَ شپي ئي اړوي چه دوي میده
میده شي
۲۶ ۲۶ ځکه چه دوي شریران دِي دَي
به ئي په مقام دَ ناظرانو کښ په
څپیړو ووهي
۲۷ ۲۷ ځکه چه دوي دده له پیروي
وګرزیدل
او دَده ټولي لاري ئي څیري نه کړي
۲۸ ۲۸ تر دي چه دوي ناري دَ مسکینانو
دَه ته ورسولي
نو دَه دَ محتاجانو فریاد واوریده
۲۹ ۲۹ هرکله چه دي آرام ورکوي نو
څوک به ئي ګرموي

اوچه خپل مخ پټ کړي څوک به
ئي ووینې ؟
برابره ده که په امّت وِي که په
انسان وِي
۳۰ ۳۰ تا چه فاجر بادشاهي ونه کړي
او خلقو لره لومه بړدونکي نه شي
۳۱ ۳۱ لیکن چا الله ته وئیل چه ما
برداشت وکړ زه به بیا فساد ونه کړم
۳۲ ۳۲ هغه چه زه ئي نه وینم ته ئي
راښکاره کړه
که ما بد کړي وِي نو بیا به ئي و
نه کړم
۳۳ ۳۳ لکه چه ستا راي دي هغه
ته دِ بدله ورکړي شِي چه ته ئې
رد کوي؟ ته به منظور کړي نه زه
او په هغه چه ته خبره یي ووایه
۳۴ ۳۴ صاحبدلان راته به وائي
بلکه دانا هغه سړي چه ځما آوري
و به وائي
۳۵ ۳۵ چه ایوّب بې معرفته خبري کوي
او دده خبره دَ دانائي نه ده
۳۶ ۳۶ نو کاشکي چه ایوّب آزمایلي شوي
وي تر آخر پوري
دَ پاره دَ ځوابونو دده لکه بدکاران
۳۷ ۳۷ لیکن دَي په خپلو خطاؤ
نافرماني زیاته کوي
څمونږ په مینځ کښ تاړي وهي
او خپله خبره په خلاف دَ الله ډیروي*

## پنځه دیرشم باب

۱ ۱ او الیهو ځواب ورکړ و ئي ویل
۲ ۲ ته دا حق ګڼړي څه؟ چه وائي ځما
صداقت له الله نه زیات دَي
۳ ۳ ځکه چه تاؤ ویل چه ما ته به
څه فائده وِي
په څه به زه له خپلو خطاؤ زیاته
فائده واخلم
۴ ۴ زه به په تا ستا خبره درو ګرزم
او ستا په دوستانو هم
۵ ۵ ته آسمانو ته وګوره او و وینه
او دا وریځي ځیري کړه چه دغه له
تا نه اوچتي دِي
۶ ۶ که ته خطا وکړي نو په هغه
څه وکړي ؟
او که ستا نافرماني ډیره وِي نو
ته به هغه لره څه وکړي؟
۷ ۷ که ته صادق یي نو هغه ته به
څه ورکړي ؟
او یا ستا له لاس به څه واخلي؟
۸ ۸ ستا شرارت تا غوندِ سړي ته

رسیږي
او دَ آدم زوي ته ستا صداقت
۹ ۹ هغوي له ډيرو ظلمونو ناري کوي
دَ زبردستو له بازو فرياد کوي
۱۰ ۱۰ او نه وايي چه الله څما صانع
چرته دَي
چه په شپې کښ دَ سرود وار
راکوي
۱۱ ۱۱ هغه چه دَ زمکي له وحشيانو
سونږ ته زيات تعليم راکوي
او دَ آسمان له مرغانو مو زيات
دانا کوي
۱۲ ۱۲ بيا د شريرانو له مغروري نه
ناري کوي
او ځواب نه ورکوي
۱۳ ۱۳ په يقين سره الله دروغ نه
اوري
او قادر هغه ته نظر نه کوي
۱۴ ۱۴ هرکله چه ته وايي چه زه ئي
نه وينم
نو دعوی دَده دَ وړاندِ ده او ته هغه
ته صبر کوي
۱۵ ۱۵ او اوس چه ده دَ خپل غضب
بازخواست و نه کړ
او په کثرت دَ فحش پروا نه کوي
۱۶ ۱۶ نو ايّوب خپله خوله په باطله
چينګه کړه
او بي له معرفتَ ئي کلام ډير کړ+

## شپږ ديرشم باب

۱ ۱ او اليهو بيا وويل
۲ ۲ چه ما ته لږ څه صبر وکړه
نو زه به ئي تا ته ظاهر کړم
چه نوري خبري هم دَ الله دَ يارَ
شته دِي
۳ ۳ زه خپل معرفت له لري راوړم
او دَ صداقت نسبت خپل صانع ته کوم
۴ ۴ په حق سره څما خبره دروغ
نه دَه
يو چه په معرفت کښ کامل دَي تا
څخه دَي
۵ ۵ کوره الله لوي دَي ليکن دَ هيچا
سپکه نه کوي
دده دَ زړه قدرت لوي دَی
۶ ۶ شريران ژوندي نه پريږدي
ليکن محتاجانو ته انصاف ورکوي
۷ ۷ دي له صادق نه مخ نه اړوي
بلکه له بادشاهانو سره ئي مدام
په تخت کښينوي
نو دوي سرفراز کيږي

۸ ۸ اګر که دوي په ځولانو بند کړي
شي
او په رسیو دَ خوارئِ ونیولي شي
۹ ۹ نو دي به دوي ته ددوي عملونه
او تقصیرونه ظاهر کړي
چه دوي په جبر سره کړي دي
۱۰ ۱۰ او دَدوي غوږونه به دَ تنبیه
دَپارَ پرانزي
او ورته به و فرمایي چه له بدکارئِ
راوګرزي
۱۱ ۱۱ که دوي واوري او تابعدار شي
نو دَدوي ورځي به په خیر تیري شي
او کالونه ئې په خوښي سره
۱۲ ۱۲ او که نه واوري نو په وسلي به
ورک شي
او بي معرفتَ به مړه شي
۱۳ ۱۳ لیکن فاجران دَ زړه به غضب
ذخیره کوي
هرکله چه دي ئي وتړي نو دوي
فریاد نه کوي
۱۴ ۱۴ دَدوي ځان به په هلکتوب
کښں مړ شي
او دَدوي ژوند دَ لوندانو په منځ
کښں
۱۵ ۱۵ محتاج ته په محتاجي کښں نجات

ورکوي
او په تنګسیا کښں ئې غوږونه پرانزي
۱۶ ۱۶ هو تا به دَ تنګسیا له ځخ نه
و جارباسي
و فراخي ته چه په کښں تنګي نشته
او ستا دسترخوان پیښي به له
غوړو ډک شي
۱۷ ۱۷ لیکن ته ججّت دَ شریرانو ډکوي
ججّت او قضا دِ نیسي
۱۸ ۱۸ دَده دَ غضب په وقت ګوره چه تا
په ځپیرو وهلو بو نه زي
او نه به دِ کثرت دَ فدیي یوه خوا
کړي
۱۹ ۱۹ هغه به ستا دَ دولت قدر وکړي
چه نه په سختي رانه شي څه؟
او یا ستا ټول قوّت دَ زور
۲۰ ۲۰ نه دَ هغي شپي ته آرزو مه کوه
چه خلق له خپلو ځایو پورته کیږي
۲۱ ۲۱ ویره وکړه بدکاري ته التفات
مه کوه
ځکه دغه تا له خواريِ نه پسند
کړي دَي
۲۲ ۲۲ ګوره الله به خپل قدرت سره
سربلندي کوي
څوک دده په شان معلّم دَي

۲۳ ۲۳ چا په ده باند دَده لار مقرّره
کړي ده
يا څوک به ده ته ووايي چه تا بد
کړي دي
۲۴ ۲۴ ته په ياد کړه چه ته دَ هغه
دَ کار تعظيم کوي
چه کسانو سرود پرِ کړي دَي
۲۵ ۲۵ ټول انسان په ده سره ليدلي
دَي
سړي له لرې ئي وينې
۲۶ ۲۶ گوره الله عظيم دَي
او مونږ ئي نه پيژنو
او دده دَ کالونو شمار په تفحص
سره نه معلوميږي
۲۷ ۲۷ څکه چه دي څاڅکي دَ اوبو
راکاږي
دَ هغو له گڼو لړو باران توېوي
۲۸ ۲۸ هغه چه اوريځې ئي اوروي
او په ډيرو سړو ئي تڅوي
۲۹ ۲۹ هو څوک به دَ اوريځې چاودنه
وپيژني
او دده دَ سايوان دَ کړک آواز
۳۰ ۳۰ گوره ده نور خپل په هغې غوړوي
بيائې په بنيادونو دَ سمندر پټوي
۳۱ ۳۱ څکه چه دَي په دي سره قومونه
کړموي
او په کثرت ډوډئِ ورکوي
۳۲ ۳۲ هغه ورغوي خپل په برېښنا
پټوي
او په نښانه لګيدلو باندي امر
ورته کوي
۳۳ ۳۳ دَده رعد دده په ختلو ځناوران
هم خبر وي ❊

# اوه ديرشم باب

۱ ۱ دي دَپارَ ځما زړه پرېشان شه
او له خپل ځاي نه ئي ټوپ وکړ
۲ ۲ په اوريدلو سره دده دَآواز رعد
واوريئِ
او هغه غلبله چه دده له خولي
راوزي
۳ ۳ دي هغه تر ټولو آسمانو دَ لاندې
پريږدي
داسي دده برېښنا دَ زمکي تر اطرافو
۴ ۴ دَده دَ ورستو آواز کيږي
دَ خپل جلال په آواز رعد کوي
او هر کله چه دَده دَ رعد آواز
واوريدلي شي نو دَدوي تاخير نه
ورکوي
۵ ۵ الله په خپل آواز سره عجب

رعد کوِي
داسې عظیم کارونه کوِي چه مونږ
ئې نه شو پېژاندلی
۶ ځکه چه دې واورې ته وايي
چه په زمکه پرېوزه
هم هسې دَ باران شیبو ته
او دَ خپل توّت دا بارانونو شیبو ته
۷ دَ هر انسان په لاس مُهر لګوِي
تا چه ټول انسان خپل خالق وپېژنِي
۸ نو حیوانان پسوني ته ننوزي
او په خپلو غرونو کښې اوسي
۹ له جنوب نه لړي راځي
او له شمال نه ساړه
۱۰ دَ الله له دم نه کرنګ کیږي
او کشادګي دَ اوبو تنګه کیږي
۱۱ هم په نور سره خپل اوریځ ګنړه
کوِي
دده برېښنا ګنړه اوریځه تار په
تار کوِي
۱۲ او هغه دَده په ګرزونو ګرزولي
شوي دِي
تا چه دَ آبادي زمکې په مخ باندِ
هر یو کار چه ور ته فرمایلي شوي
دي وکړِي
۱۳ که دَ تنبیه دَپارَ وِي او یا دَ
خپلې زمکې دَپارَ
او یا ئې دَ رَحمت دَپارَ واستوِي
۱۴ اي ایوبَ دي ته غوږ ونسه
ودرېږه او دَ الله په عجائبو فکر
وکړه
۱۵ ته دَ الله کیښودل هغه نه
پېژنې څه ؟
یا روښنائي دَ برېښنا دَ اوریځي
دده
۱۶ ته دَ وریځي په وزنونو پوهېږې ؟
هغه کاملي معرفت والي معجزې
۱۷ هرکله چه دَې زمکه دَ جنوب
له باد نه ساکنه کړِي
نو ستا جامې ځرنګ تودې شي
۱۸ ته له دې سره قضا غوړولي
شي
چه ویلي شوي آئینې په شان
مضبوطه دَه ؟
۱۹ مونږ ته راوښیه چه مونږ ده
ته څه ووایُو
دَ تیاري په سبب مونږ (خبره)
نه شو ساز کولي
۲۰ هرکله چه زه خبره وکړم په هغه
دِ قصّه وکړِي شي څه ؟
انسان دِ ووايي تا چه دَې ونغړدلي شي

۲۱ ۲۱ اوس خو دوي هغه روښانه
نور چه په قضا کښ دَي نه وینې
او باد وچلیږي نو هغه صاف کړي
۲۲ ۲۲ له شمال نه دَ سره زرو شان
راځي
دَ الله څخه هیبت ناک جلال دَي
۲۳ ۲۳ هغه قادر موږ نه شو موندلی
چه دده قوّت عظیم دَي
عدل او صداقت ئې ډېر دَي دَي
محتاجي نه ورکوي
۲۴ ۲۴ دي دَپارَ سړي ورنه وېرېږي
دي دَ هر دانا دله رعایت نه کوي ❊

## اته دېرشم باب

۱ ۱ نو خداوند ایوّب ته له ګرد باد
ځواب ورکړ او وئې ویل
۲ ۲ چه دا څوک دَي چه صلاح په
بې معرفت خبرو تاریکوي
۳ ۳ اوس ته دَ سړي غوندي ملا وتړه
زه به له تا نه سوال وکړم او ته
به ئې را وښیې
۴ ۴ ته چرته وې چه ما دَ زمکې بنیاد
کېښود
خبر راکړه که ته فهم لرې
۵ ۵ چا دَ هغې اندازه کړې ده چه
ته پوهېږې
یا چا په هغې باندې تنه وغوړوله
۶ ۶ په کوم ننې باندې دَ هغې بنیاد
قرار شه
یا چا په هغې باندې دَ کټ کاڼي کېښود
۷ ۷ هرکله چه دَ صباح ستورو یو
ځای سره سندري ویلې
او ټولو ابناء الله دَ خوښۍ آواز کاوه
۸ ۸ یا چا دریاب په وروزو وتاړه
هرکله چه دي خوټ ووهې چه له
رحم نه را ووت
۹ ۹ هرکله چه ما اوریځ دَ هغه لباس
وګرزاوه
او تورتم دَ هغه اوړنی
۱۰ ۱۰ او ما ورباندې خپل حد مقرّر کړ
او هغه لره مې بندونه او وروونه
ودرول
۱۱ ۱۱ او ومې ویل چه دلته راشې او
زیاتي تو به مه کوه
او دلته به ستا دَ موجونو کبرجنې
ختم شي
۱۲ ۱۲ او تا په خپلو ورځو کښ صباح
ته حکم کړی دَي څه ؟
او په سحر دِ دَده ځای پېژاندلی دَي
څه ؟

١٣ چه هغه اطراف دَ زمکي ونيسي
او شريران به ور نه وخنډلي شي
١٤ نو لکه ختمي دَ مُهر هسي
به وګرزي
او و به دريږي لکه چه هغه
پوشاک دَي
١٥ نو له شريرانو به دَدوي نور
منعَ کړي شي
او لوړ شوي بازوګان ماتيږي
١٦ ته دَ درياب چينو ته رسيدلي
يي څه ؟
يا دَ ژوري په ځجري کښ ګرزيدلي
يي څه ؟
١٧ تا ته دَ مرګ دروازي ښکاره
شوي دي څه ؟
يا تا دَ مرګ دَ سوري دروازي ليدلي
دِي څه ؟
١٨ تا دَ زمکي سور دريافت کړي دي
که ته ټوله پيژني نو بيان ئي وکړه
١٩ چرته دَه هغه لارچه په کښ
نور اوسي
او تياره چه مقام ئي چرته دي
٢٠ چه ته دَ هغي دَ کور سرکونه وپيژني
٢١ ته پوهيږي څکه چه ته هغه وقت
زيږيدلي وي او شمار دَ ورځو ستا ډير دَي

٢٢ ته دَ واوري خزانو ته ننوتلي
يي څه ؟
يا دِ دَ ږلۍ خزانه ګاه ليدلي دَه ؟
٢٣ هغه چه ما دَ آفت وقت ته
دَ قتل کولو او دَ جنګ ورځي ته
ساتلي دَه
٢٤ په کومي لاري کښ به نور
ويش کيږي
يا مشرقي باد به په زمکي باندِ بيل
کيږي
٢٥ چا دَ سيلاب دَپارَ نالي څيري
کړي دِي
او دَ رعد تکو ته لار
٢٦ تاچه په زمکي و اوروي هلته
چه انسان نشته
په بيابان چه هيڅوک په کښ نشته
٢٧ چه وچه او خالي زمکه اوبه
کړي
او چه دَ وابنو سنکي زرغونه شي
٢٨ باران لره پلار شته څه ؟
او دَ شبنم څاڅکي چا زيږولي دِي
٢٩ دَ چا له ګيډي کونګ راويوست
اودَ آسمان پرخه چا زيږولي ده
٣٠ لکه په کاڼي سره اوبه پټي دِي
او دَ ژوري مخ کړک نيسي

۳۱ ۳۱ ته به دَ پروويني غوټه وتړي څه؟
يا دَ کوپ بندونه به پرانزي څه؟
۳۲ ۳۲ ته به منزلونه دَ هغه په وقتونو
کښې وباسي څه؟
او ته به نعش ته دَدي دَ لونړو
سره لار وښيي څه؟
۳۳ ۳۳ ته دَ آسمانونو قاعدې پيژني
څه؟
يا ته په زمکې تسلّط کولي شي څه؟
۳۴ ۳۴ يا ته په خپل آواز اوريځي ته
پورته کړي
او ډيروالي دَ اوبو به دِ پټ کړي څه؟
۳۵ ۳۵ ته برقونه استولي شي او هغه
به لاړ شي
او تا ته به ووايي گوره موږ يو څه؟
۳۶ ۳۶ چا دننه کښې حکمت کيښودلي
دَي
يا چا په مغزو کښې زيرکي
۳۷ ۳۷ څوک به په حکمت سره اوريځي
په شمار کښې راوړلي شي
او څوک به دَ آسمانونو مشکونه
تويولي شي
۳۸ ۳۸ چه خاوري په توئيدلو جمع کيږي
او لوټي سره کلکې شي
۳۹ ۳۹ ته به ببر زمرې له ښکار
وکړي
يا ته به دَ زمري دَ بچيو لوږه ماړه
کړي څه؟
۴۰ ۴۰ هرکله چه په خپلې غارونو کښې
څار کوي
او چه دَ څو دَ پاره په خپلې پټونې کښې
کښيني
۴۱ ۴۱ څوک دَ قارغه دَ پاره دده روزي
تيار کړي
هرکله چه دده بچي الله ته فرياد کوي
او دَ نه خوراک په سبب پريشانه
گرزي؛

## نه ديرشم باب

۱ ۱ ته دَ کمرونو دَ وزو دَ زيږيدلو وقت
پيژني څه؟
يا ته دَ هوسيو دَ لنگانه درد لحاظ
کولي شي څه؟
۲ ۲ ته هغه مياشتي چه دوي يي
پوره کوي شميرلي شي څه؟
يا ته دَ هغو دَ لنگيدلو وقت پيژني
څه؟
۳ ۳ دوي پنډي شي او بچي خپل
راوړي
او خپل دردونه يي دفعه کړي
۴ ۴ دَ دوي بچي ورسيږي په ورشو

کښی پرورش صومي
ووزي او بیا دوي ته نه راګرزي
۵ دَ چا ګورخره آزاد استولي؟
او چا دَ ګورخره بندونه پرانتلي دي؟
۶ هغه چه ما بیابان دَ ده کور
وګرزاوه
او تروه زمکه دده مسکن
۷ هغه دَ کلي په غوربن پوري
خندا کوي
او دَ شړونکو زجر نه اوري
۸ دائره دَ غرونو دَ هغه څراګاه ده
او په هره زرغونه کښی تلاش کوي
۹ بیاباني غويي به ستا خدمت خوښ
کړي څه؟
یا به ستا دَ آخور څخه شپه تیره
کړي څه؟
۱۰ ته به وحشي غويي په کړک کښی
په ترونو وتړي څه؟
یا به ستا په وروستو خوړي
هواري کړي څه؟
۱۱ ته به په هغه اعتبار وکړي
څه؟
څکه چه دده قوّت لوي دي؟
یا به ده لره خپل محنت پریږدي څه؟
۱۲ ته به په هغه باور وکړي چه
ستا فصل تا ته دروړي
او ستا درمند ته ئي در ټول کړي
څه؟
۱۳ دَ شترمرغ وزر رپیږي
او دَ ده شهپرونه او پرونه مهربان
دي څه؟
۱۴ چه دي خپلي هاګۍ پرېږدي
او په خاورو کښی ئي تودوي
۱۵ او هیري کړي چه پښي ئي و
دربي
او یا دَ بیابان څناور ئي پایمال کړي
۱۶ دوي په خپل اولاد سختي کوي
لکه چه دده نه دي
که محنت دده بي‌فائدي دَي خو
بي‌خوفه ده
۱۷ څکه چه الله هغه لره دانا
هیر کړي دي
او ده ته ئي دَ فهم ویش ورکړي
نه دي
۱۸ هرکله چه دَي ځان خپل بلندي
ته تېز کړي
نو په آس او په سواره پوري خاندي
۱۹ ته به آس ته قوّت ورکړي
څه؟
او تا دده غاړي ته رپیدونکي وربز

اغوستلي دِي ؟
۲۰ ۲۰ تا هغه دَ ملخ په دود ترپولي
دَي څه ؟
دده دَ سپږمو دم هیبتناک دَي
۲۱ ۲۱ هغه په میدان کښ سُم وهِي
او په زور سره خوښي کوِي
دَ وسلي دَ ملاقات دَپارَ وزِي
۲۲ ۲۲ په ویري پوري خاندي او باک
نه لري
او له توري نه جاروزي
۲۳ ۲۳ په ده باندِ غشي شمیرِږِي
او بریښ دَ نیزي او دَ برچي
۲۴ ۲۴ دي په ترپ او په غصّه کښ
زمکه نغرِي
او نه ئي منِي چه هغه دَ تورنګ
آواز دَي
۲۵ ۲۵ دَ تورنګ دَ وهلو په وقت هاها
کوِي
او له لري دَجنګ بوي اخلِي
ناري دَ سردارانو او غوربن
۲۶ ۲۶ ستا په فهم سره باز جنبش
کوِي ؟
او ځانګي دَجنوب په لورِي غوړوِي
څه ؟
۲۷ ۲۷ یا ستا په امر سره به تجیراسیل
وکړِي
اوخپله ځاله به اوچته جوړه
کړي څه ؟
۲۸ ۲۸ په کمره و اوسي او شپه
تیروِي
په غاښي دَ کمرِه او په حصارځاي
کښ
۲۹ ۲۹ له دغه ځاي نه دَخپلي روزي
تلاش کوِي
دده سترګي ئي له لري ویني
دَده بچي ویني زبیښي او چرته
چه مړي وِي هلته هغه وِي ٭

## څلویښتم باب

۱ ۱ نوخداوند ایوّب ته ځواب ورکړ
و ئي ویل
۲ ۲ چه له قادر سره به دده ملامت
کونکي وجګړېږي څه ؟
او حجّت کونکي دَ الله دِ ده ته
ځواب ورکړي
۳ ۳ نو ایوّب خداوند ته ځواب
ورکړ و ئي ویل
۴ ۴ ګوره زه حقیر یم تا ته څه ځواب
درکړم
زه خپل لاس بد خپلي خولي بردم

۵ ۵ یو وار مې خبره وکړه لیکن بیا
به ځواب ونه کړم
او دوه واره بیا به ئې زیات نه کړم
۶ ۶ نو خداوند ایوّب ته له ګرد باد
نه ځواب ورکړو وئې ویل
۷ ۷ چه اوس خپله ملا دَ مردانه
په شان وتړه
زه به له تا نه پوښتنه وکړم او ته
ئې را وښیه
۸ ۸ ته به زما انصاف هم مات
کړې څه ؟
ته به مې ګرم کړې څه ؟ تا چه ته
صادق وخيژې
۹ ۹ ته داسې بازو لرې لکه دَ الله ؟
او په آواز سره لکه دَده دَ آواز
به شان رعد کولې شې څه
۱۰ ۱۰ نو اوس ته په جلال او په
دبدبې آراسته شه
او عزّت او جمال واغونده
۱۱ ۱۱ دَ خپل غضب ډکوالې توی کړه
او هر یو لوئې کونکې ته وګوره او
ټیټ ئې کړه
۱۲ ۱۲ هر یوه لوئې کونکې ته وګوره او
ذلیل ئې کړه
او شریران دَ دوی په مکان کښې
پائمال کړه
۱۳ ۱۳ دوی واړه په خاورو کښې
پناخ وکړه
او مخونه ئې په تیارۍ کښې بندې
کړه
۱۴ ۱۴ نو زه به دې هم ومنم چه ستا
ښۍ لاس دې خلاصولې شې
۱۵ ۱۵ وګوره هغه بهیموث چه ما له
تا سره جوړ کړې دی
چه دَ غوایه په شان واښه خوړې
۱۶ ۱۶ ګوره دده قوّت دَده په ملاؤ
کښې دې
او دده سختې دَده دَ ګیډې په
رګو کښې ده
۱۷ ۱۷ هغه خپله لکۍ لکه نښتر
ښیچې
دَ هغه دَ ورانو پلې سره اودلې
دې
۱۸ ۱۸ دَ هغه هډوکې دَ زیړو شپیلۍ
دې
دَ هغه اندامونه ارمونه د
اوسپنې دې
۱۹ ۱۹ هغه اوّل دَ لارې دَ الله دې
هغه چه دې ئې جوړ کړ خپله
توره ده ته نژدې کولې شې

٢٠ ٢٠ په تحقیق سره غرونه ده ته
چراګاه راوړي
او ټول وحشیان دَ ورشو هلته
هلته لوبې کوي
٢١ ٢١ تر نیلوفرو دَ لاندِ څملي دَ درمو
په زړنګ کښ او په ډنډونوکښ
٢٢ او نیلوفر ئي په خپل سیورِي سورِي
وربانږِ کوي
دَ ویالو ولي ئي ګیر کوي
٢٣ ٢٣ ګوره رود که ډک ښي هغه
نه خوځي
او که اُردن دَده په خولي کښ ور
وخیژِي نو هم دي برقرار وِي
٢٤ ٢٤ دَده له وړاندِ نه به ئي څوک
رانیسي څه ؟
یا دده پوزه به په ناټي سره سورِي
کړي څه ؟ ❊

## یو څلوېښتم باب

١ ١ ته لویتان په کندي سره راکاږلي
شي ؟
یا ته به دَ هغه ژبه په رسئ سره
ټینګولي شي څه ؟
٢ ٢ ته دَ هغه په پوزي کښ پیزوان
اچولي شي ؟
یا دَ هغه ژامه په مهارکندي سوئ
کولي شي څه ؟
٣ ٣ هغه به تا ته ډېري زارِي وکړي
څه ؟
یا به تا ته په نرمي خبري وکړي څه ؟
٤ ٤ هغه به له تا سره وعده وکړي
چه ته به ئي مدامي مريي کړي څه ؟
٥ ٥ ته به له هغه سره داسي لوبې
وکړي لکه چنړچيړي سره
يا ته به ئي دَ خپلو جنكو دَپاره وتړي
څه ؟
٦ ٦ يا به يو ټولي دَ ښكاريانو دده
سوداګري وكړي څه ؟
او يا به ئي دَ سوداګرانو په مېنځ
كښ وويشي څه
٧ ٧ ته به دده پوست له شنيو ډک
كړي
او دَده سر دَ ماهي په شلکيو ډک
كړي څه ؟
٨ ٨ ته خپل لاس په هغه کيږده
ته جنګ په ياد كړه او بيا هسي
مه کوه
٩ ٩ ګوره اميد په هغه باطل دي
يو كس دَده په ليدلو پرمخ نه
پريوزي
١٠ ١٠ داسي بهادر نشته چه دَي

وخوځوي
پس څوک به ځما په مخ کښې ودرېږي
۱۱ چا ما ته وړاندې راکړي دي چه
ادا ئې کړم
هر هغه څه چه تر ټولو آسمانونو
دَ لاندي دِي ځما دِي
۱۲ زه به دَده له اندامونو
او دده دَ قوّت او دَده دَ ښائست
له شمار نه چپ نه شم
۱۳ څوک به دده دَ مخ لباس لري
کړي ؟
او څوک به دده په دوي تاؤ ژمو
کښې راشي
۱۴ څوک به دده دَ خولي دروازي
پرانزي ؟
دَده دَ غاښونو دائره هيبتناکه ده
۱۵ دده فخر دَده ډالونه دِي
او ټينګ او محکم نښلولي لکه په
مُهر سره
۱۶ يو بل داسي مسه کړي چه باد ئې
په مېنځ کښې ننوتلي نه شي
۱۷ هر يو په بل پيوند شوي دي .
او داسي نښتي دي چه نه سره بېلېږي
۱۸ دده نږي رڼا بريښوي
او دَده سترګي لکه دَ صباح ځيږمي

۱۹ دده له خولي نه مشلونه راوزي
له ده نه دَ اور بڅري الوزي
۲۰ دده له سپږمو لوګي راوزي
لکه له ايشيدلي کټوئ يا له ديګ نه
۲۱ دده دم سکاره بلوي
او له خولي ئې لنبه وزي
۲۲ دده په غاړه کښې قوّت اوسي
او دَده دَ وړاندې هيبت دربز کوي
۲۳ دده دَ غوښو پيچونه پيوسته
دِي
په ده باندې ويلي شوي چه نه خوځي
۲۴ دَده زړه سخت دي لکه کاڼي
او سخت لکه لاندنئ پل دَ ژرندي
۲۵ دَده دَ رواندلو په وقت قوّتناک
ويرېږي
او له دهشتَ حيران کيږي
۲۶ هغه توره چه په ده ئې ولګوي
نه ټم کيږي
نه نېزه نه برچه نه تيره غشي
۲۷ دي اوسپنه لکه پروړه ګڼړي
او زيړ لکه وروست لرګي
۲۸ دَ ليندي غشي ئې تښولي نه شي
دَ مچوغني کاڼي له ده نه لکه
خس راجاروزي
۲۹ ګرزونه لکه خس ګڼړي

او د نیزي په شرنهار پوري خاندي
۳۰ تره لاندي تیره کودري دي
هغه خیږ په خټو کښی خوروي
۳۱ دي ژوري دَ کټوئِ په شان ایشوي
او قهرِ دریاب داسي کړي لکه کټوئِ دَ عطار
۳۲ دي په وروستو خپل لاري روښانه کوي
نو به موجونه سپین دیري وګڼلي شي
۳۳ د ده مثال په زمکه کښی نشته
چه بي ویري جوړ شوي دَي
۳۴ په هري لوړي څار کوي
دي په ټولو کبرجنو بادشاه دَي ۞

## دوڅلويښتم باب

۱ نو خداوند ته ایوب ځواب ورکړ
او ئي ویل
۲ زه پوهیږم چه ته دَ هر څیز توان لري
او هیڅ اراده ستا نه رده کیږي
۳ نو هغه څوک دَي چه په نادانئِ سره صلح پټوي
له دي سببه ما په هغه خبره وکړه چه نه پرِ پوهیدم
په عجائبو چه را نه پاس دِي او نه ئي پیژنم
۴ اوس واوره او زه به خبره وکړم
زه به له تا نه سوال وکړم او ته ئي را وښیه
۵ ما دَ غوږونو په آوریدلو له تا نه اوریدلي وه
او اوس ځما سترګي دِ ویني
۶ دي دَپارَ م ځان پرینبود
او په خاورو او په ایرو کښی پښیماني کوم
۷ او پس له هغه چه خداوند له ایوب سره په دي کلام
خبري وکړي داسي وشول چه خداوند الیفاز تیماني ته وویل
چه ځما غضب په تا او ستا په دواړو یارانو کړم شه ځکه
چه تاسي ځما په باب داسي نیک نه وویل لکه ځما بنده ایوب
۸ اوس دَ خپلو ځانو دَپارَ اوه غوایان او اوه مړونه واخلئِ او ځما
بنده ایوب ته ورشئِ او سیزونکي قربانئِ دَ خپلو ځانو دَپارَ

وخیژوئِ او څما بنده ایوّب به ستاسي دَپارَ دُعا وکړي څکه چه
زه به دده مخ پورته کړم هسي نه چه زه له تاسي سره ستاسي
دَ احمقي په موافق کار وکړم څکه چه تاسي څما په باب داسي نیک
نه وویل لکه څما بنده ایوّب ۹ نو الیفاز تیماني او بِلدَد شوحي او ۹
صوفر نعماتي لاړل او داسي ئې وکړل لکه چه خداوند ورته وویل
او خداوند دَ ایوّب مخ پورته کړ ۱۰ او خداوند ګرفتاري دَ ایوّب ۱۰
وګرزوله هرکله چه دَده دَ خپلو یارانو دَپارَ دُعا وکړه او خداوند
په هرڅه دَ ایوّب چه دَده وُو دوه ګون زیات کړل ۱۱ نو ټول وروڼه ۱۱
او خوېندي دَده او ټول وراندني اشنایان ورته راغلل او له ده
سره ئې دده په کورکښ ډوډئِ وخوړه او په ده ئې ارمان وکړ او
ده ته ئې تسلّي ورکړه له هغي ټولي بدِي نه چه خداوند په ده راکاږلي
وُو او له هغوي نه ئې هر یوه ته ئې یو قسیط او هر یوه ته یوه
ګوته دَ سرو زرو ۱۲ او خداوند دَ ایوّب آخر ته له اوّل نه ۱۲
زیات برکت ورکړ او دَده څورلس زره ګډي او شپږ زره اوښان
او زر جوړي غوایان او زر خرې لرلي ۱۳ او اوه زامن او دري لوڼي ۱۳
ئې لرل ۱۴ او دَ اولي نوم ئې یمیمه او دَ دویمي نوم ئې قصیعه ۱۴
او دَ دریمي نوم ئې قرن هفوک کیښود ۱۵ او په ټوله زمکه کښ ۱۵
دَ ایوّب دَ لوڼو په شان ښایسته ښځي موندلي نه شوي او
دَ دوي پلار دَدوي دَ ورونړو په مینځ کښ دوي ته میراث ورکړ
۱۶ او ایوّب پس له دي نه یو سل څلوېښت کاله ژوندي وه او ۱۶
زامن او زامن دَ څامنو ئې تر څلورو پیړو پوري ولیدل ۱۷ او
ایوّب زوړ له ورځو موړ مړ شه *

# PSALMS IN PASHTU.

TRANSLATED BY THE REV[DS.] WORTHINGTON JUKES, M.A.; and T. J. L. MAYER,
WITH THE ASSISTANCE OF MULLAH HAMIDULLAH.

MADE IN ENGLAND.

THE BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

—

1891.

Catalog No. A·131·2 /B 1895₃

Family INDO-EUROPEAN

Sub-Family INDO-IRANIAN

Branch IRANIAN

Group NON-PERSIC

Language PAṢHTŌ

Dialect

Locality

Contents Psalms - Malachi (Vol. III)

Version / Translators: of Psalms: Worthington Jukes, T. J. L. Mayer, Mullah Hamidullah

Published by B.F.B.S.

Place London

Date Psalms 1891, other parts 1895

Accession No. 805₃

Accession Date Sept 1 1931

Price set of four vols $1.55

# زبور

## اول کتاب

### اول

۱ مبارک هغه سړي دَي چه دَ شریرانو
په صلاح نه ځي
او دَ خطاکارانو په لار نه ودریږي
او دَ توقمارانو په مجلس کښ نه کښیني
۲ مګر دَ یهوه په توریت کښ دَ هغه
بنادِي ده
او ورځ او شپه دَده په توریت کښ
هغه فکر کوِي
۳ نو هغه به دَ هغي ونې په شان وِي
چه دَ اوبو په ولو باندِ لګولي وِي
چه په خپل وقت سره میوه نسِي
پاڼړي ئې هم نه رژیږي
او هرکار چه کوِي هغه به ترسره کیږي
۴ شریران داسي نه دِي
بلکه دَ بوسو په شان دِي چه باد ئې وړي
نو له دي سبب به شریران په عدالت
کښ و نه دریږي
او خطاکاران به دَ صادقانو په ټولي کښ
۶ ځکه چه یهوه دَ صادقانو لار پیژني
لیکن دَ شریرانو لار به دَ هلاکیدو وِي

### دویم

۱ ولي قومونه جګړي کوِي ؟
او خلق باطل فکرونه کوِي
۲ دَ زمکي بادشاهان په مخالفت پورته کیږي
او سرداران په کورکښ سره مصلحت کوِي
په یهوه او په ممسوح دَده (وايي)
۳ راشئ مونږ به دَ هغو بندونه پریکړو
او دَ هغو پړي به له خپلوځانونو نه وغورزوو
۴ هغه چه په آسمانونو کښ کښیني
وبه خاندِي
خداوند به دَ هغو پېښي وکړي
۵ پس دَي به له هغو سره په قهر خبري وکړي
او په خپل غضب سره به ئې ودروِي
۶ ما خپل بادشاه مقرّر کړي دَي
په خپل پاک غره دَ صیحون
۷ زه به دا حکم ظاهر کړم
یهوه ما ته ویلي دِي چه ته ځما زوي ئې
نن ورځ مِ ته پیدا کړي
۸ له ما نه وغواړه او زه به دَ وراثت دِپاره

قومونه درکړم
اوحدونه دَ زمکي ستا دَ قبضي دَپارَه
۹ ته به هغوي دَاوسپني په لخته مات کړي
دَ کلال دَ لوښي په شان به ئي ټوټي
ټوټي کړي
۱۰ نو اوس هوښيار شئ اي بادشاهانو
پوه شئ اي دَ زمکي قاضيانو
۱۱ دَ يهوه عبادت په ويره سره وکړئ
او په لړزيدو سره خوشحالي کوئ
۱۲ ځوي ښکلوئ- هسي نه چه دي خپه شي
او تاسو په لاري کښ هلاک شئ
ځکه چه قهر به ئي زر شُعلي وکړي
مبارک هغه ټول چه پر باندِ توکل کوي

## دريم

دَ داؤد مزمور په هغه وقت چه دَخپل ځوي اَبشالوم
نه تښتيده

۱ اي يهوه هغوي چه ما آزارَوي څومره
ډير شول
هغه چه په ما باندِ پورته کيږي ډير دي
۲ هغوي ډير دي چه څما دَ ځان په
باب کښ وايي
دَ هغه دَپارَه په خداي کښ نجات نشته (سلاه
۳ مګر اي يهوه ته څما کيرچاپير ډال يي
څما جلال او سر پورته کونکي يي
۴ زه به خپل آواز سره يهوه ته فرياد کوم
او دي له خپله پاکه غره نه ځواب
راکوي (سلاه
۵ زه څملاستم او اوده شوم
زه ويښ شوم ځکه چه يهوه مِ ساتونکي
دي
۶ زه له زرګونو خلقو نه نه ويريږم
چه هغوي ځپل ځانونه رانه چاپير کړل
۷ اي يهوه پورته شه اي څما الله ماله
نجات راکړه
ځکه چه تا ټول دُښمنان څما په ژامي
باندِ ووهل
دَ شريرانو غاښونه دِ مات کړل
۸ نجات دَ يهوه دي
ستا برکت دِ په خپل امت باندِ وي (سلاه

## څلورم

سرَدار دَ سرودګرو دَپارَه- په ستار باندِ- مزمور
دَ داؤد

۱ چه زه درته فرياد وکړم نو ځواب راکړه
اي څما دَ صداقت الله
تا ماله په تنګسيا کښ کشادګي راکړه
په ما فضل وکړه او دعا څما واوره
۲ اي بني آدمو ترکومه پوري به څما جلال
به بي عزتئ کښ بدل کړي شي
ترکومه پوري به باطلو سره محبت لرئ
او دروغ به لټوئ ؟ (سلاه

۳ او وپوهیږئ چه یهوه دَ خپل ځان دَپارَ
تقوئ دار جدا کړي دي
یهوه به واورِي چه زه ورته فریاد وکړم
۴ خپه کیږئ او گناه مه کوئ
او په خپل کټ باندِ په خپلو زړونو کښ
فکر کوئ او چپ اوسئ (سلاه
۵ دَ صداقت قربانئ ذبحي کړئ او په یهوه
توکّل وکړئ
۶ ډیر دي چه وائي چه څوک به مونږ ته
نیکي وښیي ؟
دَ خپلي څهري نور په مونږ باندِ وځلوه
اي یهوه
۷ تا م په زړه کښ خوښي واچوله
له هغو نه زیاته چه غنم او شراب دَ
هغوي ډیر شوي وُو
۸ زه به په سلامتیا سره څملم اوده به شم
ځکه چه ته م اي یهوه یواځي په خپلي
سلامتیا کښ ساتي

## پنځم

سردار دَ سرودګرو دَپارَ په سُرنا باندِ مزمُور
دَ داؤد

۱ اي یهوه څما خبرو ته غوږ کیږده
څما اندیښني ته نظر وکړه
۲ څما دَ ژړا آواز واوره اي څما بادشاه
او اي څما الله
ځکه چه تا ته دعا کوم
۳ اي یهوه ته به صبحدم کښ څما آواز واوري
او زه به په صبحدم کښ ستا دَپارَ تیار
شم او انتظار به کوم
۴ ځکه چه ته داسي الله نه یي چه په شرارت
خوښیږي
بدي ستا په حضور کښ وسیدلي نه شي
۵ احمقان به ستا په نظر کښ ونه دریږي
ته له ټولو مفسدانو سره دښمني لري
۶ ته به هغوي چه دروغ وائي هلاک کړي
یهوه له خوني او له فریبي سړي نه نفرت کوي
۷ لیکن زه به ستا په ډیري مهربانګي سره
ستا کور ته درشم
ستا له ویري به ستا دَ پاک هیکل په
لوري سجده وکړم
۸ اي یهوه په خپل صداقت سره م رهنماي
شه څما دَ دښمنانو په سبب
څما په مخ کښ خپله لار سمه کړه
۹ ځکه چه دَ هغو په خُولو کښ هیڅ وفاداري
نشته
باطن ئې ژور غار دي
ستوني ئې واز قبر دي
په خپلو ژبو سره خُشامندي کوي
۱۰ اي الله ته هغوي مجرم وګڼه
چه له خپلو مصلحتونو په خپله پریوزي

دَ گناهونو په کثرت کښ ئي لري وشړه
ځکه چه هغوي له تا نه بغاوت وکړ
۱۱ نو هغه ټول چه په تا توکّل کوي خوشحاله
به شي
هغوي به مدام له خوشحالئ ناري وهي-
ځکه چه ته ئي ساتنه کوي
هغه ټول چه ستا په نامه مينه کوي
په تا کښ دِ خوشحاله شي
۱۲ ځکه چه ته به صادقانو له برکت ورکړي
اي يهوه ته به ئي دَ خپلي مهربانئ لاندِ
لکه چه دَ ډال لاندِ پټ کړي

## شپږم

سردار دَ سرودکرو دَپارَ په ستار باندِ دَ شمس
په وزن مزمور دَ داوُد

۱ اي يهوه ته مِ په خپل قهر سره مه ترټه
او دَ خپل غضب په جوش سره ما له
تنبيه مه راکوه
۲ اي يهوه په ما باندِ فضل وکړه ځکه چه
زه بي طاقتَ شوم
اي يهوه ما جوړ کړه - ځکه چه هډونه
مِ پريشانه شول
۳ ځان مِ هم په پريشانئ کښ دي
پس ته به اي يهوه ترکومه پوري
۴ اي يهوه بيرته راشه - ځان ځما خلاص کړه
دَ خپلي مهربانئ په سبب نجات راکړه
۵ ځکه چه ستا ذکر به مړ کښ نشته
څوک به تا له په هادِيز کښ ثنا ووايي
۶ زه په زوېرګي کولو ستړي شوم
هره شپه زه خپل کټ لاهو کوم
زه خپل کټ په اوښکو باندِ لَوندوم
۷ دَ غم له سببَ مِ سترګي وچيږي
ځما دَ ټولو دښمنانو له سببَ زړيږي
۸ اي ټولو بدکارانو له ما لري شئ
ځکه چه يهوه ځما دَ ژړا آواز واوريده
۹ يهوه ځما فرياد اوريدلي دي
يهوه به ځما دعا قبوله کړي
۱۰ ټول دښمنان ځما به شرمنده شي-
زر به پريشانه شي
هغوي به وګرزي - او ناګهانه به
شرمنده شي

## اووم

شکايت دَ داوُد چه ده دَ کوش بِنيَمينئ دَ خبرو په
باب کښ دَ يهوه دَپارَ وغږاوه

۱ اي يهوه ځما الله زه به په تا توکّل کوم
ما له دَ هغو ټولو نه چه راپسي دي نجات
راکړه او خلاص مِ کړه
۲ هسي نه چه دَ زمري په شان مِ وڅيري
اوچه څوک مِ خلاصونکي نه وي ټکړي
ټکړي مِ کړي
۳ اي يهوه ځما الله که چري مِ دا وکړل

که څما په لاسونوکښ بدي وشوه
۴ که ما له هغه سره چه مینه لي را سره
کوله بدي کړې وي
(بلکه هغه چه بې سببه م دښمن وه آزاد م کړ)
۵ دښمن دې په ما پسي شي او لاندې ئې کړي
هو ژوندون څما دې هم په زمکه پايمال کړي
او عزت م دې په خاورو کښ کړي (سلاه
۶ اي يهوه په خپل قهر سره پورته شه
په سبب دَ غصّې څما دَ دښمنانو نه خپل
ځان بلند کړه
او څما دَ پاره بيدار شه تا دَ عدالت دَ پاره
حکم کړي دي
۷ او دَ خلقو ټولي به له تا نه چاپېره شي
نو ته دَ هغو دَ پاره بيا پورته وجاروځه
۸ يهوه دَ خلقو عدالت کوي
اي يهوه څما دَ صداقت په شان
او څما دَ رښتيني په شان څما عدالت وکړه
۹ اي کاشکي چه شرارت دَ شريرانو ختم شي -
ليکن ته صادقانو ته قوّت ورکړه
ځکه چه صادق الله دَ زړونو او دَ
پښتورګو ازمايونکي دي۔
۱۰ څما ډال په الله باندې دي
چه راست زړونو ته نجات ورکوي
۱۱ خداي صادق انصاف کونکي دي
هو خداي چه هره ورځ غضب کوي

۱۲ که څوک را ونه ګرزي - نو هغه به خپله
توره تيره کړي
هغه به خپلي ليندي باندې زيې لګولي ده -
او تياره کړي ئې ده
۱۳ دَ هغه دَ پاره ئې دَ مرګ اسباب تيار
کړي دَي
دَي خپل غشي سيځونکي جوړوي
۱۴ ګوره هغه له ګناه نه دَ زيږولو په
درد کښ شه
هو هغه ګناه په حمل اخستي ده - او
دروغ ئې زيږولي دي
۱۵ هغه ډوغل جوړ کړ او وئې کنود
او په هغه کنده کښ چه جوړولې په
خپله ور پريوت
۱۶ دَ هغه محنت به په خپل سر پريوزي
او دَ هغه ظلم به دَ هغه په ککرئ
ورکښته شي
۱۷ زه به دَ يهوه دَ پاره دَ ده دَ صداقت په
مطابق ثنا ووايم .
او دَ يهوه اِلله نوم به وستايم

## اتم

سردار دَ سرودګرو دَ پاره په ګتّث باندې مزمور
دَ داؤد

۱ اي يهوه څمونږ پروردګار
ستانوم څومره لوي دي - په ټوله دُنيا کښ

تاخپله بزرگي پاس په آسمانونو کښې ظاهره
کړې ده
۲ دَ ماشومانو او دَ پيِّ رودونکيو له خُلونه
دِ خپل قوّت ثابت کړي دي
ستا دَ دښمنانو له سببَ
چه دښمن او دَ بدل اخستونکي دِ
بند کړې
۳ هرکله چه ستا آسمانونو ته چه ستا دَ
گوتو کاريگري ده نظر وکړم
سپوږمۍ او ستوريو ته چه تا مقرّر کړي دي
۴ نو انسان څه دي چه ته يې په ياد راوړې؟
او ابن آدم څه دي چه ته يې خبر واخلې؟
۵ هغه دِ له الله نه څه قدر کم کړي دي
او دَ عزّت او دَ شوکت تاج دِ ور په سر
کړي دي
۶ تا هغه دَ خپل لاس په کارونو باندِ حاکم
کړي دي
هرڅه دِ دَ هغه تر پښو لاندِ کړي دي
۷ ټولي گډې او غوا
هو هم دَ صحرا ټول وحشيان
۸ دَ هوا مرغان - او دَ درياب کبان
هر تو څيز چه دَ اوبو په لاروځي
۹ اي يهوه څښتنه پرورد دِگارَ
څومره لوي دي نوم ستا په ټوله
زمکه

## نهم

سرداد دَ سرود کړو دَ پاره په مُوثلبين باندِ - مزمُور
دَ داوُد

۱ زه به په خپل ټول زړه سره دَ يَهُوَهْ
ثنا ووايم
زه به ستا ټول عجائب کارونه بيان کړم
۲ زه به له تا نه خوښ او خوشحاله شم
زه به ستا دَ نُوم مدحه وکړم اي حق تعالىٰ
۳ هرکله چه ځما دښمنان بيرته راگرزي
نو هغوي ټينده خوري او ستا په حضور
کښې هلاکيږي
۴ ځکه چه تا ځما حق او مقدمه ثابت کړي ده
ته په تخت صادق منصف ناست يې
۵ تا غير قومونه ملامت کړي دي - او شريران
دِ هلاک کړي دي
تا دَ هغو نُوم تر اَبَدُالاَباده پوري محوه
کړي دي
۶ دښمنان تمام شول - او تر ابده پوري
نابود شول
او ښهرونه چه تا وړول - دَ هغو ذکر
هم ورک شوي دي
۷ ليکن يهوه تر اَبَدَه پوري ناست دي
هغه دَ عدالت دَ پاره خپل تخت تيار کړي دي
۸ او هغه به په صداقت سره دَ دُنيا
عدالت وکړي

هغه به په راستئ سره د اُمتونو اِنصاف
وکړي
۹ يهوه د مظلومانو دپاره اوچت برج دي
د مصيبت په وقت کښې ئې اوچت برج
۱۰ او هغوي چه ستا نوم پيژني په تا به
توکل کوي
ځکه چه تا اي يهوه هغوي چه تا لټوي
ترک کړي دِ نه دي
۱۱ يهوه له چه په صيحون کښې اوسي مدحه
وغږوئ
او په اُمتونو کښې د ده کارونه بيان کړئ
۱۲ هرکله چه دي د خون تلاش کوي نو
هغوي يادوي
دي د عاجزانو فرياد نه هيروي
۱۳ اي يهوه په ما باندې فضل وکړه
ځما آزار ته وګوره له هغو نه چه ځما
کينه لري زغمم
اي ته چه د مرګ له دروازو نه ځما
پورته کونکې يې
۱۴ دي د پار چه ستا ټوله مدحه بيان کړم
د صيحون د لور په دروازو
زه به ستا په نجات خوښي وکړم
۱۵ قومونه په هغه ډوغل کښې چه ئې جوړ
کړي وه لويدلي دي
په هغه دام کښې چه دوي پټ کړي وه- هم
د دوي پښې نښتلي
۱۶ يهوه خپل ځان مشهور کړي دي هغه
عدالت وکه
د خپلو لاسونو په کار کښې شرير
نښتلي دي (هګايون سلاه)
۱۷ شريران به په هاوِيه کښې وګرزي
ټول قومونه چه الله ئې هيروي
۱۸ ځکه چه محتاجان به تر ابده پوري هير
نه کړي شي
او د خوارانو اميد به تر ابده ضايع نه شي
۱۹ پورته شه اي يهوه چه انسان غالب نه شي
د غير قومونو دِ ستا په حضور کښې
عدالت وکړي شي
۲۰ اي يهوه په هغوي وېره واچوه
غير قومونه دِ وپوهيږي چه هغوي
تش بني آدم دي (سلاه)

## لسم

۱ اي يهوه ته ولي لري ودريږې
او د غم په وقت کښې ولې ځان پټوې
۲ شريران په مغروري کښې مظلومان سيزي
دوي په هغه مصلحتونو کښې چه کړي
ئې دي ګرفتار دِ شي
۳ ځکه چه شريران د خپل نفس په هوا
فخر کوي
او حريص ته نيکبخت وايي- او يهوه

سپک ګڼړي
۴ شریر دَ خپل مخ په تکبر کښ وایي چه هغه
طلب نه کوي
دَ هغه ټول خیالونه دادي چه الله
نشته
۵ لاري ئي په هر وقت کښ مضبوطي دِي
ستا عدالتونه دَ هغه له نظره ډیر
پورته دِي
او دي په خپلو ټولو دُښمنانو باندي
پوکوهي
۶ هغه په خپل زړه کښ وایي چه زه به
تغیر نه مومم
زه به پُشت تر پُشته په تکلیف کښ نه شم
۷ دَ هغه خُله له لعنتَ او له فریبَ او له
ظلمَ ډکه ده
دَ ژبي لاندي ئي ملامتیا او فساد دي
۸ هغه دَ کلیو په پسُونو کښ کښیني
په پټو ځایونو کښ بي ګناه قتلوي
سترګي ئي په پټه سره دَ مِسکینانو څار کوي
۹ لکه دَ زمري په خپل غار کښ هغه
په پسوني کښ کښیني
هغه په پسوني کښ کښیني چه مسکینان
ونیسي
مِسکینان ونیسي چه را ئي کاږي په خپل
دام کښ

۱۰ نو هغه غلي ناست دي هغه ټیټ کیږي
او عاجزان دَ ده له قوّت ناکو نه پریوزي
۱۱ هغه په خپل زړه کښ وایي چه خدای
هیر کړي دي
هغه خپل مخ پټوي هرګز به ئي ونه ویني
۱۲ پورته شه اي یهوه اي الله خپل لاس
اوچت کړه
غریبان مه هیروه
۱۳ ولي شریر دَ الله سپکه کوي ؟
او په خپل زړه کښ وایي چه تحقیقات
به ونه کړي
۱۴ تا خو لیدلي دي - ځکه چه ته به بدئي
او زیان کاري باندِ نظر کوي چه ته
به لاس کښ واخلي
مِسکینان ځان تا ته سپارِي
او ته دَ یتیمانو مددګار شوي يي
۱۵ دَ شریر سنګلي ماتي کړه
او بد چه دَي دَ هغه شرارت ولټوه
څو چه نور بیا نه مومي
۱۶ یهوه تر اَبَدُالاباد بادشاه دي
غیر قومونه دَ ده له زمکي نه نابود
شوي دِي
۱۷ اي یهوه تا دَ مِسکینانو مراد اوریدلي دي
نه به دَ هغو زړونه قوي کړي - نه به
په خپلو غوږونو باندِ واوري

۱۸ چه دَ یتیمانو او دَ مظلومانو عدالت وکړي
ښکه چه سړي چه دَ زمکي دِي نور
ظلم ونه کړي

## یوولسم

سردار دَ سرودګرو دَ پاره - مزمور دَ داؤد

۱ په یهوه بائدِ زه توکّل کوم
تاسو ولي ځما ځان ته وایئ
لکه چڼچڼه خپل غرِه ته والوزه
۲ ګوره چه شریران په لیندو ځئ لګوي
او غشي په ځئ بدِي
چه په پټه سره راست دِلان پرِ وولي
۳ چه بنیږنه خراب شول
نو صادقان څه کولي شي
۴ یهوه په خپل پاک هیکل کښ دي
یهوه دَ هغه تخت په آسمانونو کښ دي
دَده سترګي وِیني - او بانړه ئي دَ بني آدمو
ازمایښت کوِي
۵ یهوه صادقان آزمايي
لیکن له شریرانو او له هغو نه چه
ظلم دوست لرِي - نفرت کوي
۶ دي به په شریرانو دامونه ورَوي
اور - او ګوګړ - او بادِ سموم د دوي دَ
کاسي بخرِه به شي
۷ ښکه چه یهوه صادق دي صداقت خوښوِي
هغوي چه راست دِي دَده مخ به وِویني

## دولسم

سردار دَ سرودګرو دَ پاره دَ شمینیث په وزن
بائدِ - مزمور دَ داؤد

۱ اي یهوه نجات ورکړه - ښکه چه تقوی داران
تمامیږي
ښکه چه دینداران له بني آدمو نه کمیږي
۲ هر یو خپل ګاونډي سره دروغ وایي
او په خوشامندګرو شونډو - او په دوه دلئ
سره خبري کوي
۳ یهوه به ټولي خوشامندګري شونډي پریکړي
هغه ژبي چه لوي لوي خبري کوي
۴ چه ویلي ئي دِي چه مونږ به په خپلو
ژبو سره غالب شو
ځمونږ شونډي خپلي دِي - څوک په مونږ
مالک دي ؟
۵ دَ مسکینانو دَ ظلم له سببَ - دَ عاجزانو
دَ اسویلیو له سببَ
زه به پورته شمه یهوه وایي
زه به ئي په حفاظت کښ کیږدم چه پرِ
پوزکوهي
۶ دَ یهوه خبري کرّه خبري دِي
لکه سپین زر دَ حتو په کوټالئ کښ
اووه واره صاف شوي وِي
۷ ته به ئي وساتي اي یهوه
مدام به مونږ دَدي زماني نه وساتي

۸ شریران په هر لوري ګرزي
کوم وقت چه شرارت په بني آدمو باندې سرفراز کیږي

## دیارلسم

سردار د سرودګرو د پاره - مزمور د داؤد

۱ ترکومه پوري اي یهوه د همیشه پوري به ما هیروي څه ؟
ترکومه پوري به ته خپل مخ رانه پټوي
۲ ترڅو به زه خپل ځان سره مصلحت کوم
چه ټوله ورځ به په خپل زړه کښې غمونه کوم
ترکومه پوري به مې دښمن وا باندې سرفراز کیدلی شي
۳ راته وګوره - او ځواب راکړه اي یهوه خدايه
سترګې مې روښانه کړه هسي نه چه د مرګ په خوب ووده شم
۴ مبادا چه دښمن مې ووايي چه په ده غالب شوي یم
زما آزارونکي به زما په ښوریدلو خوشحال شي
۵ لیکن ما ستا په کرم باندې توکل کړي دي
زما زړه به ستا په نجات خوښي وکړي
۶ زه به د یهوه حمد وغږوم
ځکه چه له ما سره ئې احسان کړي دي

## څوارلسم

سردار د سرودګرو د پاره - مزمور د داؤد

۱ احمق په خپل زړه کښې ویلي دي چه الله نشته
هغوي خراب شول - هغو پلیت کارونه وکړل
هیڅوک نیکي کونکي نشته
۲ یهوه له آسمانونو نه په بني آدم باندې نظر وکړ
چه ووینې چه څوک دي چه پوهیده چه د الله لټونکي شته
۳ هغوي ټول یو خوا ته شول - او ټول فاسد شول
هیڅوک نیکي کونکي نشته یو هم نشته
۴ هغه ټول مفسدان نه پوهیږي څه ؟
چه قوم زما د ډوډي په شان خوري
او د یهوه نوم نه اخلي
۵ هغوي هلته په ډیري ویري کښې وو
ځکه چه الله د صادقانو په پیړۍ کښې دی
۶ تاسو د عاجز مصلحتونه سپک ګڼئ
مګر یهوه د هغه پناه دی
۷ کاشکي چه د اسرائیل نجات له صیونه وتلی وي
هغه وقت چه یهوه د خپل قوم قیدیان راوګرزوي
نو یعقوب به خوښ شي - او اسرائیل به خوشحال شي

## پنځلسم

مزمور دَ داؤد

۱ اي يهوه څوک به ستا په خيمه کښ وسيږي
ستا په پاک غره کښ به څوک استوګنه
وکړي
۲ هغه چه سم ځي - او صداقت کوي
او په خپل زړه کښ رښتيا وايي
۳ هغه چه په خپلي ژبي سره تُهمت نه لګوي
او خپل دوست سره بدي نه کوي
او په خپل ګاونډي باندِ عيب نه لګوي
۴ او کمينه دَده په نظر کښ سپک وي
ليکن هغو له چه له يهوه نه ويريږي
عزّت ورکوي
هغه چه په خپل نُقصان قسم خوري
او نه بدليږي
۵ او هغه چه خپل نقد دَ سُود دَپارَ
نه ورکوي
او دَ بي ګناه دَ آزارولو دَپارَ رِشوت
نه آخلي
هغه چه دا کارونه کوي - هيڅري به
ونه خوځيدلي شي

## شپاړسم

مِکتام دَ داؤد

۱ اي الله ته مِ وساته - ځکه چه زه
په تا باندِ توکّل کوم
۲ يهوه ته مِ وويل چه ته څما يهوه يي
بي له تا نه څما بهتري نشته
۳ مُقدّسان چه په زمکه کښ دِي
دوي بزرګان دِي چه په کښ څما ټوله
خوښي ده
۴ دَ هغوي غمونه به زيات کړي شي - چه
يهوه په بل معبود بدلوي
زه دَ هغو دَ وينو توييولو قرباني و نه کړم
او په خپلو شونډو به دَ هغوي نُوم هم وانه خلم
۵ څما دَ ميراث او څما دَ پيالي برخه يهوه دي
ته به څما حِصّه مضبوطه کوي
۶ پړي به غورو ځايونو کښ څما دَپارَ
پريوتلي دي
هو څما ميراث پاکيزه دي
۷ زه به يهوه مبارک کړم - چه ماته يي
صلاح راکړه
هو څما پښتورګي په شپه کښ ما له
تعليم راکوي
۸ يهوه مامدام دَ خپل وړاندِ ايښي دَي
چه دي څما ښي لاس دي - زه به هيڅري
و نه خوځولي شم
۹ له دي سبب زړه څما خوشحال دي -
او جلال څما خوښي کوي
جسم څما به هم په حفاظت کښ اوسي
۱۰ ځکه چه ته به ځان څما په هاديز کښ

پرې نږدې
او خپل تقوىٰ دار له به د سخا کيدلو
ليدل ور نه کړې
۱۱ ته به ما ته د ژوندانه لار وښيې
ستا په حضور کښ د خوشحالئ ډکوالي دي
ستا په ښي لاس کښ ترابده پورې
ښادئ دي

## اوولسم

دعا د داؤد

۱ اې يهوه صداقت واوره-خما فرياد
ونغوږه
خما دعا ته چه له بې ريا شونډو نه وزي
غوږ کېږده
۲ خما انصاف دې ستا له حضوره ووځي
ستا سترګې دې په راستئ نظر وکړي
۳ تا خما زړه وازمايه-تا په شپه کښ
خما خبر واخست
خما آزماينښت دې وکړ- مګر هيڅ بدي دې
بيا نه مونده
ما نيت وکړ چه خما خله به خطالي
ونه کړي
۴ د انسان کارونه چه دي ستا د شونډو
د خبرو نه
خپل ځان مې د ظالم له لارونه وساته
۵ خما قدمونه ستا په لارو کښ ټينګ
شوي دي
خما ښپې ښوئيدلي نه دي
۶ ما خو تا ته ناري وهلي دي ځکه چه
ته به اې الله ځواب راکړې
ما ته غوږ کېږده او خبره مې واوره
۷ خپلې عجائبي مهربانئ ظاهري کړه-اې
ته چه نجات ورکوې هغو ته چه
په تا توکل کوي
له هغو باغيانو نه چه ستا د ښي لاس
په برخلاف دي
۸ ما د سترګې د کسي په شان وساته
د خپلو وزرو تر سورې لاندې مې پټ کړه
۹ له شريرانو له مخې نه چه ما هلاکوي
خما له سختو دښمنانو نه چه را نه چاپېره
کېږي
۱۰ هغوي په خپلو وازدو کښ پټ شول
په مغرورئ سره خبري کوي
۱۱ اوس هغوي خموږ لاري ګيري کړلي
او سترګې ئې ځار راپسې کوي چه
موږ په زمکه ويرزوي
۱۲ هغه د زمري په شان دي چه په
ښکار مين وي
او لکه د زمري ډېچي چه غلي په پسولي
کښ کښيني
۱۳ پاڅه اې يهوه

دَ هغوي مخي ته شه - و ئي غورزوه
ځان ځما په خپله تُوره له شريره خلاص
کړه
۱۴ له خلقونه په خپل لاس اي يهوه
دَ دُنيا له خلقونه چه برخه ئي په دي
دُنيا کښ ده
او چه ته ئي کيډي له خپلي خزانې نه
ډکوي
هغوي دَ اولاد سره ماړه شول
او دَ خپلو ماشومانو دَپارَ باقي پريږدي
۱۵ مګر زه به په صدق سره ستا ديدار
ووينم
هر کله چه زه بيدار شم نو ستا په شکل
به موړ شم

## اته لسم

سردار دَ سرود کرو دَپارَ - مزمُور دَ داؤد - بنده دَ يهوه چه
خبره دي سرود ئي دَ يهوه دَپارَ په هغي ورځي چه
يهوه دَ ټولو خپلو دُښمنانو له لاسَ - او هم
دَ ساؤل له لاسَ خلاص کړي وه - خبري ئي
وکړي و ئي ويل چه
۱ اي يهوه ځما قوّتَه زه به تا بانِد مين يم
۲ يهوه ځما کټ او ځما قلعه او ځما خلاصونکی
دي
ځما الله ځما کټ په هغه زه به
توکل کوم
ځما ډال او ځما دَ نجات ښکر ځما اوچت
برج دي
۳ زه به هغه يهوه ته چه ممدوح دي
فرياد وکړم
په دي شان به زه له خپلو دُښمنانو نه
نجات بياموم
۴ دَ مرګ پړيو راګير کړم
دَ بي دِينئ سيلابونو ووېرولم
۵ دَ هادِيز پړيو ګير کړم
دَ مرګ داموته په ما بانِد راغلل
۶ ما په خپلي تنګسيا کښ يهوه ته
فرياد وکړو او خپل الله ته مِ زارِي وکړه
له هيکل ئي ځما آواز واوريده
او ځما زارِي دَده دَ وړاندِ دَده په غوږو
کښ ورسيدله
۷ نو زمکه ولړزيدله او په زلزله شوه
بيخُونه دَ غرونو هم وخوځيدل
او په لړزيدو کښ شُو چه دي په قهر
شه
۸ پس دَده دَ سپږمو لوګي راپورته شه
او له خولي ئي اوْر وخوارِه
سکروټي ورنه بلي شولي
۹ آسمانونه ئي هم راټِيټ کړل - او
کوز راغي
او دَ قدمونو لاندِ ئي توره تياره وه

۱۰ او په کروبي باندې سور شه-او والوت
هو هغه د باد په وزرو باندې زر والوت
۱۱ له تيارې نه يې خپل ستر چاپېره خيمه
له ځانه ګېرچاپېر جوړه کړل
د اوبو تياره د آسمانونو اورېځې
۱۲ د هغه د مخې له روښنائي نه اورېځې
تيرې شوې
ږلۍ او د اور سکروټې
۱۳ يهوه هم په آسمانونو کښې وګرزېده
او حق تعالىٰ خپل آواز وکړ
ږلۍ او د اور سکروټې
۱۴ او هغه خپل غشي وويشتل-او هغوي
يې تار په تار کړل
هو برېښنا يې قسما قسم-او هغوي
يې پرېشان کړل
۱۵ نو د اوبو نالې ظاهرې شوې
او بېخونه د جهان ښکاره شول
ستا په ترټلو اې يهوه
ستا د سپېرمو د باد په الوتلو
۱۶ او له پاسه يې را واستاوه زه يې ونيولم
له ګنړو اوبو نه يې را وکښلم
۱۷ زه يې له زورآوره دښمن خپله خلاص
کړم
او ځما له دښمنانو نه ځکه چه له ما
نه زورآور وُو

۱۸ دوي ځما د تنګدستۍ په ورځ کښې وا باندې
راغلل
ليکن يهوه ځما تکيه وه
۱۹ وه زه بهر کشاده ځاي ته را وويستلم
او خلاص يې کړم ځکه چه دې له ما
نه خوشحاله وه
۲۰ يهوه ما له موافق ځما له صداقت سره
بدله راکړه
موافق ځما له پاکدستۍ سره يې ما ته
بدله راکړه
۲۱ ځکه چه ما طريقې د يهوه ساتلې دي
او له خپل الله نه په شرارت سره تلې نه يم
۲۲ ځکه چه د هغه ټول عدالتونه ځما په
نظر کښې وُو
او د هغه حکمونه مې له ځانه لرې نه کړل
۲۳ زه د هغه سره کامل وم
او خپل ځان مې له خپلې ګناه نه وساته
۲۴ دې د پاره يهوه ځما له صداقت سره
برابر ما ته بدله راکړه
موافق ځما له پاکدستۍ سره چه د هغه
په حضور کښې وه
۲۵ تقوىٰ دار سره به تقوىٰ داري وکړې
د کامل سړي سره به ته خپل ځان
کامل وښئې
۲۶ پاک سره به ته خپل ځان ښه پاک وښئې

او دَ کوږ سره به ته خپل ځان
کوږ وښئې
۲۷ ځکه چه ته مظلوم قوم له نجات
ورکوې
او سترګې دَ کبرجنو به ته کوزې کړې
۲۸ ځکه چه ته به ډیوه ځما روښانه کړې
یهوه ځما الله ځما تیاره رڼا کوي
۲۹ ځکه چه زه ستا په مدد په داړه وزغلېدم
دَ خپل الله په سبب مِ له دیواله ودنګل
۳۰ الله چه دي لارهٔ ئې کامله ده
کلام دَ یهوه مجرب دي
دَ هغو ټولو چه په ده توکّل کوي ډال ئې
دي
۳۱ بي له یهوه نه څوک الله دي ؟
او څوک ګټ دي بي له الله نه ځمونږ ؟
۳۲ هغه الله چه ملا ځما ئې مضبوط وتړله
او لارې ځما کاملې کوي
۳۳ پښې ځما دَ هوسئې په شان کوي
او ما په خپلو اوچتو ځایونو باندِ ودروي
۳۴ لاسونو ځما ته دَ جنګ تعلیم ورکوي
تر دې حده چه بازوګان ځما د زیړو لیندې
کږوي
۳۵ تا دَ خپل نجات ډال ما له راکړ
او ښي لاس ستا را پورته کړم
او احسان ستا لوي کړم

۳۶ ځما ترقدمونو لاندِ دِ ځاي ارت کړ
او پښې ځما و نه ښوئېدلې
۳۷ زه به په خپلو دُښمنانو پسې روان شم
او لاندِ به ئې کړم
او ورنه به را و نه ګرزم څو چه هلاک
نه شي
۳۸ داسې به ئې ووهم چه پاځېدلې نه شي
ځما د پښو لاندِ به پرېوزي
۳۹ ځکه چه تا دَ جنګ دَپارَ ځما ملا وتړله
تا لاندې کړي دي هغه چه په ما پورته
شوي دي
۴۰ تا ځما دَ دُښمنانو ما ته شا کړه
چه زه هغوي چه له ما سره دَښمني کوي
تباه کړم
۴۱ هغوي زارِي وکړه مګر هیڅوک ئې نجات
ورکوونکي نه وه
هو یهوه ته - مګر ده ځواب ورنه که
۴۲ او هغوي مِ دَ باد دَګرد په شان اوړه
اوړه کړل
او دَ کوڅو دَ چقړو په شان مِ وغورزول
۴۳ زه دِ دَ خلقو له جګړو نه خلاص کړم
په قومونو باندِ دِ سردار کړم
هغه قوم چه ما نه پېژاند ځما به خدمت وکړي
۴۴ دَ غوږ اورېدلو سره به مِ دوي واوري
بېګانه به په مکر سره ځما خدمت وکړي

۴۵ بیګانه به وچ شي
او له خپلو بندو ځایونو نه به په لړزېدلو
سره راشي
۴۶ یهوه ژوندي دي او مبارک دِ شي ځما کټ
او ځما دَ نجات الله دِ سرفراز شي
۴۷ هغه الله چه ځما بدل اخلي
او قومونه ځما لاندِ کوي
۴۸ هغه ما له خپلو دُښمنانو نه خلاصوي
هو ته مِ له هغه نه چه په ما پاسي
ما پورته کوي
له ظالم سړیه مِ آزادوي
۴۹ دي دَپارَ به ستا اي یهوه په قومونو
کښ حمد وایم
ستا نومَ به وستایمِ
۵۰ دي خپل بادشاه ته لوي نجات ورکوي
او خپل مسیحَ کړي شوي له مهرباني ورکوي
داؤد له او اولاد له ئي ترابده پوري

## نولسم

سردارِ دَ سرودکرو دَپارَ - مزمور دَ داؤد

۱ آسمانونه جلال دَ الله بیانوي
او فضا عمل دَ لاسونو دَده ښکاره کوي
۲ یوه ورځ دَ بلي ورځي سره خبري کوي
او یَوه شپه بلي شپي ته علم ورښیي
۳ نه ئي ویل شته نه ئي خبري
آواز دَدوي هم آوریدي نه شي
۴ مګر په ټوله زمکه کښ تار دَدوي وتلي دي
لفظونه دَدوي دَعالم تراخره پوري
ده په هغوکښ دَ نمر دَپارَ خیمه ودروله
۵ چه دَ واده دَ زلمي په شان له خلوتخاني
خپلي نه بهر راوزي
او لکه پهلوان دَ میدان په دورکښ
خوشحالي کوي
۶ دَ آسمانونو له یوي څنډي نه دَ هغه
راوتل دِي
دَ هغه ګردش دي تر بلي څنډي پوري
او له ګرمي ئي هیڅ څیز پټ نه دي
۷ توریت دَ یهوه کامل دي ځان راګرزوکي
شاهدي دَ یهوه رښتیني دِي- ساده
سړي هوښیار وِي
۸ مسایل دَ یهوه راست دِي زړه خوشحاله
کوي
حکم دَ یهوه صاف دي سترګي روښانه
کوي
۹ ویره دَ یهوه پاکه دَه ترابده پوري باقي دَه
عدالتونه دَ یهوه رښتیني دِي- او ټول
صادق دِي
۱۰ او دوي له سرو زرو غوره بلکه له ډیرو
کړو زرو نه زیات دِي.
له شاتو نه او دَ ګبینه له څڅیدلو
نه خواږه دِي

۱۱ بنده ستا له دغو نه عبرت مومي
دَ دغو په ساتلو کښ ډېر اجر دي
۱۲ څوک خپله خطا ليدلي شي
ته مِ له پټو گناهونو نه پاک کړه
۱۳ بنده خپل له گناهونو نه په ستنه کړه
چه په ما باندِ غالبه نه شي نو زه به
کامل شم
او له لوي گناه نه به صفا تم
۱۴ څما دَ خولي خبرِ او څما دَ زړه فکر دِ ستا
په حضور کښ منظور شي
اي يهوه څما کټ او څما شفيعَ

## شلم

سردار دَ سرودگرو دَ پارَ- مزمور دَ داؤد

۱ دَ تنگدستيِ په ورځ دِ يهوه تاله جواب
درکړي
دَ يعقوب دَ الله نوم دِ تا محفوظ کړي
۲ ستا دَ پارَ دِ له مقدسَ مدد درواستوي
او له صيحونه دِ تا ته کومک درکړي
۳ ټولي پيشکشئ ستا دِ په ياد راوړي
او سيځونکي قربانئِ ستا دِ قبولي کړي (سلاه
۴ ستا دَ زړه له مراد سره دِ برابر تا ته
انعام درکړي
او ټول مصلحت ستا دِ پوره کړي
۵ مونږ به ستا په نجات خوښي وغزوو
او دَ خپل الله په نوم به جنډي خيلي
ودرووُ
يهوه دِ ټول سوالونه ستا پوره کړي
۶ اوس زه پوهيږم چه يهوه خپل مسيح
ته نجات ورکوي
هغه به دَ خپل پاک آسمانه ځواب ورکړي
دَ خپل ښي لاس دَ نجات له قوّتَ
۷ څيني په گاډو او څيني په آسونو باور کوي
ليکن مونږ به دَ خپل يهوه الله دَ نوم
ذکر وکړو
۸ هغوي ټيټ شول او پريوتل
ليکن مونږ پاسيدلي او سم ودريدلي يو
۹ اي يهوه نجات راکړه
کومه ورځ چه مونږ فرياد کوُو نو
بادشاه دِ مونږ له جواب راکړي

## يو ويشتم

سردار دَ سرودگرو دَ پارَ- مزمور دَ داؤد

۱ اي يهوه ستا په قوّت بادشاه خوشحالِي
کوي
او ستا په نجات به څومره ډېره ښادِي وکړي
۲ تا ده ته دَده دَ زړه مراد ورکړي دي
او تا دَ هغه دَ شونډو عرضي منع نه
کړله (سلاه
۳ ته دَ نيکيِ په برکتونو سره دَ هغه دَ
وړاندِ شوي
دَ خالصو سرو زرو تاج دِ ور په سر کړه

۴ هغه له تا نه ژوند وغوښت تا ورکه
درازي دَ ورځو تر ابدالآبادَ پورې
۵ عِزّت دَ هغه ستا په نجات کښې ډېر دې
زِينت او شوکت دِې ور باندِ کيښول
۶ ځکه چه تا هغه ډېر مبارک کړې تر
ابدالآبادَ
تا هغه په خپل حضور کښې په خوښئ
سره خوشحاله کړې
۷ ځکه چه بادشاه په يهوه باندِ تکيه کوي
او دَ حق تعالیٰ په فضل سره به ونه خوځيدلې
شي
۸ ستا لاس به ستا ټول دُښمنان ځرګند کاندِ
ستا ښي لاس به ستا ټول کينه کوُنکي بيامومي
۹ ته به هغوي دَ خپل قهر په وقت کښې
دَ اور دَ تناره په شان کړې
يهوه به هغوي په خپل غضب سره ونغړي
او اور بـه يې وخوري
۱۰ ته به د هغو ميوه له زمکې نه نابودَ کړې
او دَ هغو اولاد دَ بنيآدم له مينځ
۱۱ ځکه چه هغه له تا سره دَ بدي نيّت وکه
هغوي بد تدبير وکه چه پوره کولې يې
نه شه
۱۲ ځکه چه ته به دَ هغو شا وګرزوې
دَ خپلي ليـــدي زِې به دَ هغو په
مخامخ راکاږې

۱۳ اې يهوه ته په خپل قوّت سره هسک شه
نو مونږ به ستا دَ قدرت غزل او مدحه
ووايُو

## دوويشتم

سردار دَ سرود کوو دَپارَ اَيِّلَتْ هَالشَّحَرْ په وزن
مزمُور دَ داؤد

۱ اې ځما الله اې ځما الله زه دِ ولې پرېښې يم
ولې لرې يې ځما له مددَ او ځمادَ زوېرکي له خبرو نه
۲ اې ځما الله زه په ورځ کښې ناري وهم-
مګر ته ځواب نه راکوې
او دَ شپې هم او زه پټه خوله نه يم
۳ مګر ته قُدُّوس يې
اې دَ اسرائيل په مدحَ کښې اوسيدونکې
۴ ځمونږ پلرونو په تا تکيه لرله·
تکيه ئې وکړه او تا هغوي خلاص کړل
۵ او چه هغوي تا ته فرياد وکه نو خلاص
شول
چه هغو به تا باندِ تکيه وکړه نو شرمنده
نه شول
۶ ليکن زه خو چينجي يم او نه سړې
دَ سړو پيغور يم او په قوم کښې سپک
۷ هرڅوک چه ما وينې راپوري خاندِي
شونډي را ته بُوځوي او سرونه
خوځوي (وايي)
۸ يهوه ته ځان وسپاره هغه دِې ئې خلاص

کړي
هغه دِ نې خلاص کړي ځکه چه هغه
له ده نه خوشحاله دَي
۹ مګر ته هغه ئې چه زه دِ له رَحِمَ
را وویستلم
دَ خپلې مور په تیو باندِ تا مِ تکیه وکړله
۱۰ له رَحِمَ په تا وسپارلي شوم
دَ مور له ګیډي نه ځما الله ته ئې
۱۱ له ما نه مه لرې کیږه ځکه چه سختي
نژدې ده
ځکه چه مددګار هیڅوک نشته
۱۲ ډیرو غوایانو راګیر کړم
مضبوط غوایان دَ باشان له ما نه چاپیر شول
۱۳ هغوي په ما باندِ خپلي خُلي وازي کړي
لکه دَ ښیرونکي او دَ غریدونکي زمري
۱۴ زه دَ اوبو په شان توي شولم
او ټول هډوکي مِ بیل بیل شول
زړه مِ دَ موم په شان دَي
ویلي شوي دَي ځما دَ کُلمو په مینځ کښ
۱۵ قوّت مِ دَ کودري په شان وچ شه
او ژبه مِ په تالو پوري ونښتله
او تا زه دَ مرګ خاورو ته راوستلي یم
۱۶ ځکه چه له ما نه سپي چاپیر شول
دَ شریرانو ټولي راګیر کړم
لاسونه او پښي ځمائي سوري کړل
۱۷ زه ټول هډوکي خپل شمارلي شم
هغوي ما ته ګوري او نظر را ته کړي
۱۸ او جامي ځما په خپل مینځ کښ سره ویشي
او ځما په لباس باندِ هسک اچوي
۱۹ لیکن ته اي یهوه له ما مه لرې کیږه
اي ځما قوّتَ ځما دَ کومک دَپارَ تلوار وکړه
۲۰ ځان ځما له تورې نه خلاص کړه
ځما یکانه دَ سپي له پنجي نه
۲۱ دَ زمري له خُلي نه ما له نجات راکړه
هو دَ ځنګلي غوایه له ښکرونو نه دِ ما
له ځواب راکړي دي
۲۲ زه به دَ خپلو وروڼو په مینځ کښ نوم
ستا بیان کړم
دَ ټولي په مینځ کښ به حمد ستا ووایم
۲۳ اي له یهوه ویریدونکیو حمد دَ هغه ووائې
اي ټوله اولادَ دَ یعقوب دَ ده جلال ظاهر
کړئ
او اي ټوله اولادَ دَ اسرائیل له ده نه
ویره وکړئ
۲۴ ځکه چه ده درد دَ دردمندانو حقیر
او سپک ګڼلي نه دي
او مخ ئې له هغه نه پټ نه کړ
او چه ده ته ئې فریاد وکه نو وائې ورید
۲۵ له ما نه به ستا حمد په لوي جماعت کښ وِي
زه به خپل نذرونه دَ هغو په مخ کښ چه

له ده نه ویرېږي ادا کړم
۲۶ حلیمان به ډوډئ وخوري او ماړه به شي
هغوی به د یهوه حمد کوي چه طالبان
ئي دي
زړونه ستاسو دې ترابده پوري ژوندي
وي
۲۷ ټول حدونه د جهان به یاد کړي - او د
یهوه په لوري به راوګرزي
او ټولي ټبري د قومونو به ستا په حضور
کښ سجدي وکړي
۲۸ ځکه چه بادشاهي د یهوه ده
او دي حاکم دي په قومونو باندي
۲۹ غټان د دنیا به وخوري او سجدي به وکړي
هم هغه ټول چه خاورو ته کوزیدونکي
دي د ده په حضور کښ به ټیټ شي
هغه هم چه خپل ځان ژوندي
پاتي کولي نه شي
۳۰ یو اولاد به د ده خدمت کوي
بل پشت ته به د خداوند په باب کښ بیان
وکړي شي
۳۱ هغوی به راشي او د هغه صداقت به وښیي
امت له چه پیدا به شي چه ده کړي دي

## درویشتم

مزمور د داؤد

۱ یهوه ځما شپون دي - زه به د هیڅ څیز
محتاج نه شم
۲ هغه ما په شنو چراګاهو کښ څملوي
هغه مي د راحت اوبو څنګه بیایي
۳ هغه ځان ځما بیرته راګرزوي
د خپل نوم په وسیلي سره ما ته د صداقت
په لاري کښ هدایت کوي
۴ بلکه هرکله چه زه د مرګ د سوري
په خوړ کښ ځم
نو د هیڅ بدئ نه به نه ویرېږم ځکه چه
ته ما سره یي
ستا کوټئ او ستا لرګي به ما له تسلي
راکوي
۵ ته ځما د دښمنانو په روبرو ځما په مخ کښ
دسترخوان غوړوي
ته مي په سر تیل مږي - ځما پیاله تر
مورګو پوري ډکه شوله
۶ فقط نیکي او مهرباني د ټولو ورځو د
ژوندانه به په ما پسي راځي
او زه به مدام د یهوه په کور کښ اوسم

## څلورویشتم

مزمور د داؤد

۱ زمکه د یهوه ده او ډکوالي ئي
دنیا او د هغې ټول اوسیدونکي
۲ ځکه چه هغه بنیاد د هغې په اوبو
باندي کیښود

او په دریابونو باندِ ئي ودروله
۳ څوک به دَ یهوه په غره باندِ وخیژي
او څوک به دَ هغه په پاک مکان باندِ
قایم شِي
۴ هغه چه لاسونه ئي صاف وِي او زړه
ئي پاک وِي
چه خپل ځان ئي بطلان ته اوچت
نه کړِ
او چه په فریب سره ئي قسم و نه خوړ
۵ هم هغه به له یهوه نه برکت بیاموِي
او صداقت به دَ خپل نجات له الله نه
۶ دَ هغه دَ طالبانو پیړيِ دا ده
چه ستا دیدار لټوِي اي دَ یَعقُوب
الله (سلاه
۷ اي دروازو خپل سرونه پورته کړئِ
او اي ابدِي دروازو پورته کړي شئِ
چه دَ جلالِ بادشاه درننوزِي
۸ هغه دَ جلال بادشاه څوک دي ؟
یهوه قُوَتناک او قادر دي
یهوه چه په جنگ کښ زوراور دي
۹ اي دروازو خپل سرونه پورته کړئِ
هو اي ابدِي دروازو پورته کړئِ
چه دَ جلال بادشاه درننوزِي
۱۰ دَ جلال بادشاه څوک دي ؟
دَ فوځونو یهوه
هم هغه دَ جلال بادشاه دي

## پنځه ویشتم

مزمُور دَ داؤد

۱ اي یهوه زه خپل ځان ستا به لورِي پورته
کوم
۲ اي ځما الله ما په تا باندِ تکیه وکړه
شرمنده دِ نه شم
دښمنان دِ په ما باندِ خوشحال نه شِي
۳ هم هغه ټول چه په تا امید لرِي شرمنده
دِ نه شِي
بلکه هغه دِ شرمنده شِي چه په ناحق
فتنه انګیز دِي
۴ اي یهوه ما ته لارِي خپلي راښکاره کړه
ما ته طریقي خپلي راوښیه
۵ په خپلي رښتنيِ مِ راهنمائي وکړه-او راته
وښیه
چه ځما دَ نجات الله ته يي
زه ټوله ورځ تا ته انتظار کوم
۶ اي یهوه خپل رحمتونه او مهربانئِ یادي کړه
چه دا واړه ازلي دِي
۷ ځما دَ ځوانئِ خطا مه یادوه او نه ځما
تقصِیرونه
دَ خپلي مهربانئِ له سببه ما یاد کړه
دَ خپلي نیکئِ له سببه اي یهوه
۸ یهوه نیک او راست دي.

ځکه چه خطاکارانو ته به لاړ کښې
تعلیم ورکوي
۹ حلیمانو ته به په عدالت کښې لارو ښيي
او حلیمانو ته به خپله لار وښيي
۱۰ ټولې طریقې د ښېړه د مهربانۍ او د راستۍ
دي
هغو له چه د ده د وعدې او د شاهدو
حفاظت کوي
۱۱ اې یهوه د خپل نامه په ټوي
ځما بدي وبخښه ـ ځکه چه لويه ده
۱۲ هغه کوم سړي دي چه له یهوه نه ویریږي
دي به هغه ته لاري وښيي چه دي لې
غوره کړي
۱۳ د هغه ځان به په آرام کښې اوسي
او اولاد د هغه به د زمکي وارث شي
۱۴ راز د یهوه له هغو سره دي چه له ده نه
ویریږي
او وعدې خپلې به هم هغو ته ور ښکاره
کړي
۱۵ سترګې ځما مدام د یهوه په لوري دي
ځکه چه دي به ځما پښي له دام وباسي
۱۶ ځما په لوري نظر وکړه ـ او په ما رحم وکړه
ځکه چه زه یواځې او عاجز یم
۱۷ ځما د زړه غمونه زیات شوي دي
ته ما له تنګسو نه خلاص کړه
۱۸ ځما په عاجزۍ او ځما په خوارۍ باندې نظر وکړه
ته مې ټولې خطا معافي کړه
۱۹ د ښمنان ځما ګوره چه ډیر دي
او په سخته کینه له ما سره کینه لري
۲۰ ځان ځما وساته او خلاص مې کړه
شرمنده دې نه کړي شم ځکه چه په تا باندې
توکّل کوم
۲۱ نیکوکارې او راستې دې ځما نګهباني وکړي
ځکه چه زه تا نه انتظار کوم
۲۲ اسرائیل ته فدیه ورکړه اې الله
د خپلو ټولو سختیو نه

## شپږویشتم

مزمور د داود

۱ اې یهوه ځما انصاف وکړه ـ ځکه چه زه
په خپلې نیکوکارۍ کښې تللې یم
ما هم په یهوه باندې تکیه وکړه او زه به
ونه ښوئیږم
۲ اې یهوه ما وآزمایه او ځما ازمایښت وکړه
پښتورګې ځما او زړه ځما ګرم کړه
۳ ځکه چه ستا شفقت ځما د سترګو د وړاندې دي
او زه ستا په رښتینۍ کښې لاړم
۴ باطل کارانو سره زه نه کښیناستم
او له ریاکارانو سره به د ننه نه ځم
۵ د بدکارانو د جماعت سره کینه کوم
او له شریرانو سره به کښېنې نه نم

۶ زه به په پاکیزګئ کښې خپل لاسونه ووینځم
چه ستا د قربانګاه طواف به وکړم ای یهوه
۷ چه زه د شکرګذارئ آواز واوروم
او چه ستا د ټولو عجائبو کارونو بیان وکړم
۸ ای یهوه ستا د کور په استوګنی مینه کوم
او په هغه مکان چه ستا جلال په کښې اوسی
۹ ځان خما د خطاکارانو سره مه شامل کوه
نه ژوند خما له خونیانو سره
۱۰ چه د هغو په لاسونو کښې فساد دی
او ښی لاس ئې له بډو نه ډک دی
۱۱ مګر زه به په خپلی راستئ کښې لاړ شم
نه ما له فدیه راکړه - او په ما باندې فضل وکړه
۱۲ پښی خما په سم ځای ودریږی
په جماعت کښې به زه یهوه ته مبارک ووایم

## او ویشتم

مزمور د داؤد

۱ یهوه خما نور او خما نجات دی له چانه
وویریږم ؟
یهوه خما د ژوندانه قوت دی له چا نه
ویره وکړم ؟
۲ چه بدان په ما باندې نږدی راغلل خما د
غوښو خوړلو د پاره
هو دښمنانو مې او کینه کونکو مې ټیندک
وخوړ او پریوتل
۳ که لښکر په ما باندې خیمې ودروی
خما زړه هیڅ نه ویریږی
که په ما جنګ پورته شی
نو هم زه به تکیه وکړم
۴ ما له یهوه نه یو سوال وکه - د دی طلبګار
به شم
چه ټول عمر د یهوه په کور کښې استوګنه
وکړم
دی د پاره چه زه د یهوه نعمت ووینم
او د ده په هیکل کښې تحقیقات وکړم
۵ ځکه چه دی به م د مصیبت په ورځ
د خپل سایوان لاندې په پناه کښې وساتی
د خپلی خیمې په پردې کښې به م پټ کړی
په ګټ باندې به م وخیژوی
۶ نو اوس به خما سر پورته کړی شی خما د
دښمنانو د پاسه چه له ما نه چاپیره دی
او زه به د ده په خیمه کښې د ښادئ ذبحې
حلالې کړم
غزل د ده به وغړوم - د یهوه د پاره به مدح وکړم
۷ واوره ای یهوه چه زه په خپل آواز سره
فریاد کوم
او په ما باندې هم فضل وکړه او ځواب راکړه
۸ تا ته خما زړه ووې چه خما مخ ولټوه
ستا مخ ای یهوه لټوم -
۹ خپل مخ له ما نه مه پټوه
خپل بنده په غضب سره لرې مه شړه

ته څما مددګار شوي
نو مه مې ترک کوه - او مه مې پرېږده اې
څما دَ نجات اَلله
۱۰ چه زه خپل پلار اوخپلې مور پرېښوم
مګر يهوه به ما شامل کړي
۱۱ اې يهوه ما ته خپله لار وښيه
او ما ته دَ سمې طرِيقې هدايت وکړه
څما دَ دښمنانو له سببَ
۱۲ دَ خپلو دښمنانو په نفس مې مه سپاره
څکه چه دروغژن ګواهان او هغوي چه
دَ ظلم ساه اخلي راته پورته شول
۱۳ زه بې‌خوده شوم که مې ايمان رانه ورچه
دَ يهوه نعمت وِوينم
دَ ژوندانه په زمکه کښې
۱۴ دَ يهوه منتظر اوسه
مضبوط اوسه اوخاطرجمع شه
هو دَ يهوه منتظر اوسه

## اته وِيشتم

مزمور دَ داود

۱ اې يهوه تا ته به فرياد وکړم
اې څما کټ ته له ما نه مه کونړ کيږه
هسې نه که له ما نه چپ شې
زه بـه دَ هغو په شان شم
چه په کنده کښې کوزيږي
۲ واوره آواز څما دَ فريادونو چه زه تا ته
زارۍ کوم
هرکله چه خپل لاسونه ستا پاک مقدِس
ته پورته کړم
۳ له هغو شريرانو سره ما مه شريک کوه
او دَ بدکردارانو سره
چه له خپلو همسايګانو سره سلام کوي
او په زړونو کښې ئې بد وي
۴ هغـو له دَ خپلو کارونو په شان ورکړه
او موافق دَ شرارت دَ هغو دَ عملونو
موافق دَ عملونو دَ لاسونو دَ دوي ورکړه
هغو ته عوض خپل ور وګرزوه
۵ دَپاره دَ دې چه هغوي دَ يهوه په کارونو
نه پوهيږي
او دَ ده دَ لاسونو په عمل
دې به هغوي وغورزوِي او بيا به ئې
جوړ نه کړي
۶ يهوه دِ مبارک وِي
چه ده څما دَ مِنتونو آواز اوريدلی دی
۷ يهوه څما قوّت اوڅما ډال دی
څما زړه په ده تکيه کړې ده
او زه مدد موندلی شوی يم
نو زړه مې خوشحال شه
او زه به په غزل سره دَ ده حمد وِوايم
۸ يهوه دَ هغو قوّت دی
او دَ خپل مسيح دَ نجات دَپاره محکمه قلا ده

۹ ته خپلو خلقو ته نجات وبخښه - او خپل
میراث ته برکت ورکړه
او هغوي وڅروه - او هغوي تر ابده پورې
سرفراز کړه

# نه ویشتم

مزمور د داؤد

۱ اي ځامنو د خدایانو یهوه ته منسوب
کړئ
جلال او قوت یهوه ته منسوب کړئ
۲ یهوه ته د ده د نوم جلال منسوب کړئ
د قدوسیت په زینت سره یهوه ته سجده وکړئ
۳ د یهوه آواز په اوبو باندې دي
د جلال الله ګړیږي
هو یهوه په ګڼو اوبو باندې دي
۴ د یهوه آواز زورآور دي
د یهوه آواز له شوکت ډک دي
۵ د یهوه آواز نښتر ماتوي
هو د یهوه آواز د لبنان نښتر ماتوي
۶ دي هغه د سخي په طور توپ لوي
لبنون او سریون د وحشي غوایه د بچي
په شان
۷ د یهوه آواز د اور شغلې خیروي
۸ د یهوه آواز صحرا لړزوي
یهوه د قادس صحرا لړزوي
۹ د یهوه آواز هوسئ پیازوي
او ښونه ماتوي
او د ده په هیکل کښې هر څه وايي جلال
۱۰ یهوه په طوفان باندې کښیناست
هو یهوه د بادشاه په شان کښیني تر ابده پورې
۱۱ یهوه خپلو خلقو ته زور بخښي
یهوه به خپلو خلقو ته د سلامتیا برکت
ورکړي

# دیرشم

مزمور چه د کور د تخصیص کولو په وقت کښې سرود - د داؤد

۱ اي یهوه زه به ستا ستاینه وکړم - ځکه
چه تا زه راوچت کړم
او زما دښمنان دې را باندې خوشحال نه کړل
۲ اي یهوه زما الله
ما تا ته زاري وکړه - او تا ما له شفا راکړه
۳ اي یهوه تا زما ځان له هاویې پورته
کړي دي
تا زه ژوندي کړي یم چه زه کندي ته
کوز نه شوم
۴ حمد وغږوئ یهوه له اي د هغه
تقوی دارانو
او د ده د پاک نوم یادګاري وکړئ
۵ ځکه چه د ده قهر د یو دم دي
په رضامندئ کښې ئي ژوندون دي
شپې له به ژړا وي
مګر صباح ته به ښادي

۶ ما دَ خپلي خوښئ په وقت کښې ووئیل
چه زه به ترابده پوري ونه خوځیږم
۷ اي یَهوَه تا په خپلي مِهربانئِ سره څما غر
مضبوط که
تا خپل مخ پټ که زه پریشانه شوم
۸ اي یهوه ما تا ته فریاد وکه
او ما له خداوندَ فضل وغوښت
۹ چه څما په وِیني کښې به څه فائده حاصله
شِي؟ چه زه په کنده کښې کوز شم؟
خاوري به ستا حمد ووائي څه؟ او یا به
ستا دَ رښتنئ بیان وکړي څه؟
۱۰ اي یهوه واوره او په ما فضل وکړه
اي یهوه ته مِ مددکار شه
۱۱ ژړا څما په گډیدلو بدله کړه
کند دِ رانه پرانست او ملا څما دِ دَ خوښئ
په کمربند وتړله
۱۲ دي دَپارَ چه لوئي څما ستا مدحَ وکړي
او چُپ نه شِي
اي یهوه څما الله زه به ترابده پوري
ستا شکر کوم

## یو دیرشم

سردار دَ سرودکرو دَپارَ- مزمُور دَ داؤد

۱ اي یهوه زه په تا توکل کوم شرمنده
دِ هیچري نه شم
په خپل صداقت سره مِ خلاص کړه
۲ ته خپل غوږونه څما په لوري راټیټ کړه او
په جلتئ سره مِ خلاص کړه
ته څما دَپارَ مضبوط کټ څما دَ نجات
دَپارَ محکمه قلا یي
۳ ځکه چه ته څما کټ او قلا یي
دَ خپل نوم په سبب ما ته هدایت او
لار ښوونه وکړه
۴ له هغه دامَ چه هغوي څما دَپارَ پټ
غوړولي دي ته مِ خلاص کړه
ځکه چه ته څما پناه یي
۵ زه خپل روح ستا لاس ته سپارم
اي یهوه دَ رښتني الله تا څما دَپارَ فدیه وکړهٔ
۶ زه له هغو سره کینه لرم چه دَ دروغو
بطلان ساتي
لیکن زه به په یهوه تکیه کوم
۷ ستا په مِهر به خوښ او خوشحال شم
ځکه چه تا څما په غم باندِ نظر وکه
او تا څما دَ ځان سختئ وپیژندلي
۸ او زه دِ دَ دښمنانو په لاسونو کښې بند نه کړم
او پښې څما دِ په ارت ځاي باندِ ودرولي
۹ اي یهوه په ما فضل وکړه ځکه چه
زه په تنگ حال کښې یم
څما سترگي له غمَ وچیږي هو څما ځان
او څما بدن
۱۰ ځکه چه ژوند څما په غم کښې او کالونه

مِرِ په هايُ هوِي كښِ تير شول
خما قوت خما دَ بديُ په سبب كم شه-او
خما هډوكِي وچ شوِي دِي
۱۱ زه دَ ټولو دُښمنانو له سببَ پيغور شوم
هو خما بي شمار همسايكانو ته اوويره خما
دوستانو ته
چه بهر ئي وليدلم راته وتښتيدل
۱۲ زه له ياده هير شوي يم لكه دَ مړ
دَ مات لوښي په شان شوي يم
۱۳ ځكه چه ما دَ ډيرو تُهمت اوريدلي دي
كير چاپير مِرِ ويره ده
په ما باندِ ئي يو تر بله مصلحت وكړ
خما دَ ځان وژلو دَ پارَ ئِي تجويز وكه
۱۴ مګر اي يهوه ما په تا باندِ تكيه وكړه
ما ووِ ته خما الله يي
۱۵ وقتونه خما ستا په لاس كښِ دِي
ما دَ خپلو دُښمنانو له لاسَ-او هم له
هغو چه را باندِ ظلم كوِي خلاص كړه
۱۶ خپل مخ په خپل بنده باندِ وځلوه
او په مِهربانيُ خپلي سره نجات راكړه
۱۷ اي يهوه شرمنده دِ نه شم-ځكه چه ما
تا ته فرياد كړي دي
شريران دِ شرمنده شِي او په هاديز كښ
دِ چپ پاتي شِي
۱۸ دروغژني شونډي دِ چپ شِي
چه دَ بي عزتيُ خبري چه په صادقانو كستاخي
كوِي
په غرور او په كبر سره
۱۹ څومره لويه ده نيكي ستا چه دَ خپلو ويريدونكو
دَ پارَ دِ ساتلي ده
چه تا كړي دِي دَ هغو دَ پارَ چه په تا باندِ
توكل كوِي دَ بني آدمو دَ وړاندي
۲۰ هم ته به دوي دَ بني آدمو له بندونو نه دَ
خپل حضور په پرده كښِ پټ وساتي
ته به دوي دَ ژبو له جګړو په خپلي خيمي
كښِ پټ كړي
۲۱ يَهُوَهُ دِ مبارك شِي
ځكه چه ده عجائبي مهربانيُ په يو محكم
ښهر كښِ را ښكاره كړي
۲۲ ما په خپلي جلتيُ سره وويل چه زه ستا
دَ سترګو له وړاندِ نه پريكړي شوم
ليكن هغه وقت چه ما تا ته فرياد وكړ-
نو تا خما دَ زاريو آواز واوريده
۲۳ اي تاسو ټولو تقوىٰ دارانو دَ يَهُوَهُ سره
مينه لرئ
يهوه دَ ريښتينو ساتنه كوِي
او كبرجن ته به ډير اجر وركړي
۲۴ زور آور شئ-او خاطر جمع اوسئ
تاسو ټول چه يَهُوَهُ ته انتظار
كوئ

## دوديرشم

مزمور دَ داؤد مسکيل

۱ مبارک دي هغه چه گناه ئې وبخنلي شوه
چه خطائې پټه شوه
۲ مبارک دي هغه سړي چه يَهُوَهْ دَده
بدي په حساب کښې رانه وړي
او رياکارِي دَ هغه په روح کښې نه وِي
۳ هرکله چه زه چپ شوم- نو هډوکي زما
زاړه شول
دَ ټولې ورځې له غړنبيدلو له سببَ
۴ ځکه چه ورځ او شپه ستا لاس په ما
باندِ درند وُه
تازګي زما دَ اوړي په خشکيْ سره بدله
شوله (سلاه
۵ تا ته مې په خپلې گناه اقرار وکړ
او خپله خطا مې پټه نه کړه
ما وويل چه زه به يهوه ته دَ خپلو گناهونو
اقرار وکړم
او تا زما دَ بديْ گناه معافه کړه (سلاه
۶ دَدي دَپارَ به هر يو تقوىٰ دار تا ته دعا
وکړِي په کوم وقت چه ته موندي شي
په يقين سره که دَ ډيرو اوبو سيلاب
راشي- هغه ته به ونه رسيږي
۷ ته زما دَپارَ پناه يې- ته به مِ له تنګسيا
نه وساتي
او دَ خلاصي په سرودونو به مِ سره ګير
کړي (سلاه
۸ زه به تا پوه کړم- او دروبه ښَيم هغه
لارچه ته به پرِځي
زه به نصيحت درکړم زما سترګي به پر
تا وِي
۹ تاسو دَ آسپي او دَ قچري په شان مه کيږئ
چه بې تميز وِي
په واګي او په قيزي سره ئې خونبي تابع
کيږي
هسي نه وِي چه درنږدي شِي
۱۰ دَ شريرانو دَپارَ به ډير عذابونه وِي
مګر په هغو باندِ چه په يهوه باندِ تکيه
کوِي مهرباني به تِرچاپيره شي
۱۱ اي صادقانو له يهوه نه خوشحاله اوسيْ-
او ښادِي کويْ
او اې ټولو راست دلانو خونبي وغږويْ

## دري ديرشم

۱ اي صادقانو دَ يهوه خونبي وغږويْ
چه حمد دَ راست دلانو دَپارَ ښه دي
۲ يهوه ته په ستار سره حمد کويْ
په لس تارِي رباب ئې حمد وغږويْ
۳ نوي شعر ور ته وغږويْ
ښايسته وغږويْ په لوي آواز سره
۴ ځکه چه کلام دَ يهوه راست دي

او ټول کارونه دَده له رښتيا سره دي
۵ دي دَ صداقت او دَ عدالت سره مينه لري
زمکه دَ يهوه له مهربانئ نه ډکه ده
۶ دَ يهوه له کلامَ آسمانونه جوړ شول
او دَده دَ خولي له دمَّ دَهغو ټول لښکر
۷ ذي دَ درياب اوبه دَ ډيرئ په شان
جمع کوي
زوري په انبارخانو کښ جمع کوي
۸ ټوله زمکه دِ له يهوه نه وېرېږي
او وسيدونکي دَ جهان دِ له ده نه په
وېره کښ وي
۹ ثکه هغه چه ده وويل وشول
او هغه چه ده وفرمايل نو ودريدل
۱۰ يهوه دَ قومونو مصلحت باطلوي
او ارادې دَ خلقو بي فايدي کوي
۱۱ مصلحت دَ يهوه ترابده پوري قايم دَي
خيالونه دَ زړه ئ ترابده پوري جاري
دِي
۱۲ مبارک دي هغه قوم چه الله ئ يهوه
دي
هغه قوم چه دَخپل وراثت دَپارَ ئ
غوره کړي دي
۱۳ يهوه له آسمانه ګوري
دي په ټولو بني آدمو باندِ نظر کوي
۱۴ او دَخپلي استوګني له مقامَ هغه نظر
کوي
په ټولو اوسيدونکيو دَ زمکي
۱۵ هغه چه جوړَوي زړونه دَ ټولو
په ټولو عملونو باندِ ئ فکر کوي
۱۶ هيڅ بادشاه نشته چه دَ لښکر په کثرت
سره نجات بيامومي
نه پهلوان په ډېر قوّت سره بچ کيږي
۱۷ آس دَ بچاو دَپارَ خوشي ثيز دي
او له خپلَ زورَ هيڅوک خلاصولي نه شي
۱۸ ګوره دَ يهوه نظر په خپلو وېريدونکيو
دي
هم په هغو چه دَده دَ مهربانئ اميدوار
دِي
۱۹ دِ هغو دَ ثان دَ خلاصولو دَپارَ
او په قحط سالئ کښ به ئ ژوندي وساتي
۲۰ ثان ثمونږ دَ يهوه دَپارَ انتظار وکه
مددګار او ډال ثمونږ هم دَي دَي
۲۱ ثکه چه ثمونږ زړه په ده کښ خوشحال شي
ثکه چه مونږ دَده په مُقدّس نوم تکيه
کړي ده
۲۲ اي يهوه ستا مهرباني دِ په مونږ باندِ وي
لکه چه مونږ تا ته انتظار کړي دي

## ثلور دېرشم

مزمُور دَ داؤد په هغه وقت کښ چه ده دَ ابي مَلِک
په حضور خپل عقل متغير که چه ئ وشاړه

او هغه لاړ
۱ زه به هر وقت یهوه مبارکِ کړم
ذده ثنا به مدام ځما په خوله کښ وي
۲ ځان ځما به په یهوه خپل فخر وکړي
او غریبان خلق به واوري او خوشحال
به شي
۳ بزرګي دَ یهوه له ما سره وکړئ
او مونږ به ټول دِ دَده نوم وستایُو
۴ ما یهوه ته سوال وکړ او ده ځواب راکه
او له ټولو خپلو ویروئ خلاص کړم
۵ هغوي په ده باندِ نظر وکه او روښانه شول
او مخونه ئي شرمنده نه شول
۶ دي غریب فریاد وکه او یهوه واوریده
او له ټولو دپړونو ئي نجات ورکه
۷ فرښته دَ یهوه دَ ویریدونکیونه ئي ګیرچاپیر
خیمه ودروي
او هغوي خلاصوي
۸ و ئي ځکه او و ئي ګوره چه یهوه ښه دي
مبارک هغه سړي دي چه په ده توکل
کوي
۹ دَ یهوه نه ویره کوئ اي دَده مُقدَّسانو
ځکه چه هیڅ حاجت نه دي دَ هغو چه
دده نه ویره کوي
۱۰ د زمري بچي محتاج او وږي کیږي
مګر هغه چه دَ یهوه طالبان دِي دَ
هیڅ ښه څیز محتاج به نه شي
۱۱ راشئ اي هلکانو ځما واورئ
زه به تاسو ته دَ یهوه ویره دروښیم
۱۲ هغه کوم سړي دي چه دَ ژوندانه شوق
لري
او دَ ډیرو ورځو مینه لري چه ښه ووینې
۱۳ ژبه خپله له بدئ نه وساته
او خپلي شونډي دَ ریاکارئ له خبرو
کولو نه
۱۴ له بدئ نه وتښته او نیکي کوه
او صلحه لټوه او ورپسي شه
۱۵ دَ یهوه سترګي دَ صادقانو په طرف دِي
او غوږونه ئي دَ هغو دَ فریاد په طرف دِي
۱۶ مخ دَ یهوه دَ بدکارانو په خلاف دَي
چه یاد دَ دوي به له زمکي نه ورک کړي
۱۷ صادقان فریاد وکه او یهوه واورید
او هغوي له ټولو دپړونو نه خلاص کړل
۱۸ یهوه دَ شکسته دلانو زړه ته نزدي دي
او هغه ته چه روح ئي غمجن دي نجات
ورکوي
۱۹ دَ صادقانو تکلیفونه ډیر دِي
مګر یهوه به ئي له ټولو خلاصوي
۲۰ دي دَ هغو ټولو هډونه ساتي
له هغو نه یو هم مات شوي نه دي
۲۱ شر به شریران هلاک کړي

او هغوي چه صادقانو سره کينه کوي-
مجرم به ئې کړي
۲۲ يهوه دَ خپلو بندګانو دَ ځانونو دَپارَ
فديه ورکوي
او هر څوک چه په ده توکّل کوي مجرم
به نه کړې شي

## پنځه ديرشم

مزمور دَ داؤد

۱ اي يهوه له هغو سره چه له ما سره
کينه کوي ته کينه وکړه
او له هغو سره چه له ما سره جنګ
کوي ته جنګ وکړه
۲ ډال او وسله وتړه
او څما دَ مددکارئ دَپارَ پورته شه
۳ نيزه هم وباسه او لاره بنده کړه دَ هغو
چه په ما پسې راځي
ځان څما ته وفرمايه چه ستا نجات
زه يم
۴ هغه چه څما ځان لټوي خجل او شرمنده
دِ شي
هغه چه څما دَ ضرر فکر کوي وګرزولي
او ګډود دِ شي
۵ لکه بوس دَ باد دَ وړاندِ دِ شي
او فرښته دَ يهوه دِ ئې په ماتې ووهي
۶ لار دَ دوي دِ تاريکه او خوئيدونکي وي
او فرښته دَ يهوه دِ ورپسې وي
۷ ځکه چه بي سبب ئې څما دَپارَ دام خپل
په دوغل کښ پټ ايښي دَي
او ناحق ئې څما دَ ځان دَپارَ وکنوده
۸ ناګهاني افت دِ پرِ نازل شي
او په هغه دام کښ چه په خپله ئې پټ
کړي دي هم دوي دِ ونښلي
او په هغه افت سره دِ په کښ په خپله
پريوزي
۹ نو ځان څما به په يهوه کښ خوشحال شي
او دَ ده په نجات به خوښي وکړي
۱۰ ټول هډونه څما به ووائي-چه اي يهوه
څوک به ستا په شان وي
چه مظلوم به دَ هغه له لاسَ چه له
ده نه زبردست وي خلاص کړي
بلکه مسکين او بيچاره به له هغه نه
خلاص کړي چه شوکې کوي
۱۱ دروغژن ګواهان پورته شول
له ما نه ئې هغه سوالونه وکړل چه زه
پرِ نه پوهيږم
۱۲ هغوي له ما سره بدي کوي دَ نيکئ په بدله کښ
څما دَ ځان دَ خوابولو دَپارَ
۱۳ چه هغوي رنځوران شول- نو جامې مې کندې
او په روژې لړلو مې نفس خپل ضعيف کړ
او دُعا مې په خپل غيږ کښ په بيرته

راغله

۱۴ زه داسي لارم لکه چه هغه
خما دوست یا ورور وه
او سر م ټیټ کړ لکه چه څوک دَ خپلي
مور ویر کوي
۱۵ مګر دوي خما په غم خوښ شول-او سره
ټول شول
هو هغه رابانـدِ تهمت کوونکي راجمع شول
چه زه ورنه خبر نه وم
وئي څیرلم او منع نه شول
۱۶ له ریاکارانو توقي وهونکيو په منځ کښ
په میلمستیا
هغوي په ما بانـدِ غاښونه چیچل
۱۷ اي خداوندَ ترڅو به ګوري
ځان خما له هغو خرابیو نه خلاص کړه
یګانه خما له زمریو نه
۱۸ زه به په لوي جماعت کښ ستا حمد ووایم
او دَ ډیرو خلقو په منځ کښ به ستا
مدحه وکړم
۱۹ هغوي چه خما دښمنان دي- په ما دِ ناحق
خوشحال نه شي
او هغه چه ناحق کینه راسره کوي سترګي
دِ نه رپوي
۲۰ ځکه چه هغوي دَ صلاح خبري نه کوي
لکه دَ ملک دَ صلاح خواهانو په ضد دَ
فریب مصلحت کوي
۲۱ اوخولي ئي راته وازي کړي دي
هغه ووئیل هاها خمونږ سترګو ولید
۲۲ اي یهوه تا خو داولیدل چُپ مه اوسه
اي خداوندَ له ما نه مه لري کیږه
۲۳ بیدار شه او ویښ شه خما دَ عدالت دَپارَ
خما دَ مقدمي دَپارَ اي خما الله او اي
خما خداوندَ
۲۴ اي خما یهوه الله خما انصاف وکړه
موافق دَ خپل صداقت سره
او هغوي دِ په ما خوشحال نه شي
۲۵ او هغه دِ په خپل زړه کښ ونه وايي-
چه هاها مونږ داسي غوښت
او دا دِ هم نه وايي-چه مونږ هغه ونغړد
۲۶ هغه چه خما په نقصان خوښیږي
رسوا او شرمنده دِ شي
هغوي دِ چه په ما بانـدِ په مغروري سره
خیژي دَ بي عزتي او دَ شرمندګي جامي
دِ وروا اغستولي شي
۲۷ هغوي چه خما دَ صداقت مشتاق دي
نبارِي دِ وکړي- اوخوشحال دِ شي
او مدام دِ وايي چه یهوه دِ لوي کړې شي
چه خوشحال دي دَ خپل بنده په
سلامتیا سره
۲۸ او ژبه خما به ستا دَ صداقت بیان کوي

هم ستا دَجلال تهوله ورځ

## شپږ دیرشم

سردار دَ سرود کرو دَ پاره مزمور دَ داؤد بنده دَ یهوه

۱ دَ شریر دَ شرارت خبري څما په زړه کښ دي
چه ذده په سترګو کښ دَ الله ویره نشته
۲ ځکه چه هغه په خپلو سترګو خوشامندي
کوي
دا سي چه څما بدي معلومه نه شي او
کینه نه کړي شي
۳ دده دَ خولې خبري بدي او دَ فریب دي
ده دانائي او نیکي ترک کړي ده
۴ هغه په خپل کټ باندې دَ بدي تجویز کوي
او په داسي لار کښ چه ښه نه ده ودریږي
هغه له بدئ نه نفرت نه کوي
۵ اي یهوه ستا مهرباني په آسمانونو کښ ده
ستا رښتیني تر اوریځو پوري رسیدلي ده
۶ صداقت ستا دَ الله دَ غرو په شان دَي
او عدالتونه ستا هم یو لوي ژور دي
اي یهوه ته انسان او حیوان ساتي
۷ اي الله ستا مهرباني څنګه بیش قیمته ده
او بني آدم ستا دَ وزرو تر سوري لاندې
پناه نیسي
۸ او دوي به ستا دَ کور دَ څورب والي نه ماړه
شي
او دَ خپلي خوشنودئ دَ دلونه به پر

۹ ځکه چه دَ حیات چینه تا څخه ده
ستا په نُور کښ به موږ نور وویڼو
۱۰ ته خپله مهرباني په هغو باندې چه تا
پیژني زیاته کړه
او صداقت خپل په راست دلانو باندې
۱۱ دَ کبرجنو پښي دِ ما ته ونه رسیږي
او لاس دَ شریرانو دِ ما ونه شړي
۱۲ هلته دَ بدئ کار کوونکي پریوتلي دي
غورزولي شوي دي او پورته کیدلي
به نه شي

## اوه دیرشم

مزمور دَ داؤد

۱ ته دَ شریرانو له سببه مه نولیږه
حسدناک مه شه په هغو باندې چه
بدي کوي
۲ ځکه چه هغوي به زر دَ وښو په شان
ریکړي شي
او دَ شنو وښو په شان به وچیږي
۳ په یهوه باندې تکیه وکړه او نیکي کوه
په ځمکه کښ ووسه په رښتیني سره
وڅره
۴ په یهوه باندي خوشحال اوسه
او هغه به ستا دَ زړه سوالونه تا له
درکړي

۵ خپله لار يهوه ته وسپاره
په ده باندي تکيه وکړه نو هغه به
ئي وکړي
۶ او هغه به ستا صداقت د روښنايي په شان
وباسي
او ستا عدالت به د غرمي په شان
۷ يهوه ته چپ اوسه او د هغه د پار
انتظار کوه
په هغه چا چه خپلي لاري ترسره کوي
مه نوليږه
له هغه سړي له سبب چه بد تدبيرونه کوي
۸ له قهر نه را وګرزه - او غضب پرېږده
مه نوليږه چه تش بديُ ته دِ ورسوي
۹ ځکه چه بدکاران به غوڅ شي
مګر هغه چه د يهوه منتظر دي وارثان
د زمکي به شي
۱۰ اوس لږ باتي دي چه شريران به نه وي
او ته به د ده د ځاي په غور سره تلاش
وکړي - او نه به وي
۱۱ مګر عاجزان به د زمکي وارثان شي
او له ډيري سلامتيا سره به خوشحاله
اوسي
۱۲ شرير په صادق باند سازش کوي
او غاښونه ور ته چيچي
۱۳ خداوند به په دوي پوري وخاندي
ځکه چه دي ئي وينې چه د هغه ورځ
راځي
۱۴ شريرانو توري ويستلي - او ليندي ئي
په ځئ کړي
د غريب او د مظلوم د پرزولو د پار
د لاري د راستانو د هلاکولو د پار
۱۵ د هغو توري به د هغو په زړونو کښ
ورننوزي
او ليندي به ئي ماتي شي
۱۶ لږ چه صادق ته دي ښه دي
د ډيرو شريرانو له دولت
۱۷ ځکه چه متي د شريرانو به ماتي شي
ليکن يهوه صادقانو ته تکيه ورکوي
۱۸ يهوه د کاملانو ورځي پيژني
او ميراث د هغو به ترابده پوري وي
۱۹ د آفت په وقت کښ به شرمنده نه شي
بلکه د قحط په ورځو کښ به هم ماړه وي
۲۰ ځکه چه شريران به برباد شي
او دښمنان د يهوه به په شان د
ښائسته والي د ورشو
فنا به شي د لوګي په شان به فنا شي
۲۱ شريران قرض اخلي او بيا ئي نه ورکوي
ليکن صادقان احسان کوي - او بخشش
ورکوي
۲۲ ځکه چه مبارکان د ده به وارثان د زمکي

شي
لیکن مَلعُونان به پرېکړي شِي
۲۳ قدمونه دَ سړي دَ یهوه له طرفه مقرّر
کړي شوي دِي
دَده په لاره کښ خوشحال دِی
۲۴ او چه پرېوزي نو هم به هلاک نه شي
ځکه چه یهوه یې دستګیر دی
۲۵ ځوان وم اوس زوړ شوم
نو هم ما صادق ترک شوي لیدلی نه دی
او نه اولاد دَده دوډۍ لټونکي
۲۶ ټوله ورځ هغه احسان کونکي دي او
قرض ورکونکي
او اولاد دَده هم مبارک دي
۲۷ له بدۍ نه لرې شه او نیکي کوه
او تر ابده پوري آباد اوسه
۲۸ ځکه چه یهوه په عدالت مینه کوي
او تقوی داران خپل نه پرېږدي
بلکه تر ابده پوري یې ساتلي دِي
لیکن اولاد دَ شریرانو به پرېکړي شِي
۲۹ صادقان به دَ زمکي وارثان شي
او تر ابده پوري به په کښ اوسي
۳۰ دَ صادقانو خوله دَحکمت بیان کوي
او ژبه یې دَ عدالت خبري کوي
۳۱ دَخپل الله توریت یې په زړه کښ دي
او قدمونه یې نه ښوئیږي
۳۲ شریر په صادق پسي څار کوي
او دَده دَ قتل تلاش کوي
۳۳ یهوه نه دي دَ هغه په لاس کښ پرېږدي
او دَ عدالت کولو په وقت کښ به یې
مجرم نه کړي
۳۴ یهوه ته منتظر اوسه او لاري دَده ساته
او هغه به تا دَ زمکي وارث کولو دپاره
سرفراز کړي
او چه شریران پرېکړي شي نو ته به یې وویني
۳۵ ما شریر هیبتناک ولید
دَ هغي وني په شان چه په خپل زمکه کښ
خوریږي
۳۶ خو تېر شه او ګوره هغه نه وه
ما یې تلاش وکه لیکن بیا نه موندي شه
۳۷ کامل سړي په نظر کړه او راست سړي
ته وګوره
ځکه چه آخر دَداسي سړي سلامتي ده
۳۸ او ګناهګاران به ټول هلاک شي
آخر دَ شریرانو به پرېکړي شي
۳۹ او نجات دَ صادقانو له یهوه نه
دي
او دَ تنګسیا په ورځ کښ یې قلا ده
۴۰ یهوه دَدوي مددګار دي او ساتي یې
له شریرانو نه یې ساتي او نجات ورکوي
ځکه چه دوي په ده توکّل کړي دي

## اته دیرشم

مزمور دَ داؤد دَ ذکر کولو دَ پارَ

۱ اي يهوه ته په خپل قهر سره ما مه رټه
او په خپل غضب سره تنبيه مه راکوه
۲ ځکه چه ستا غشي په ما کښ ننبلي
او لاس ستا را باندِ درونډ ولګيد
۳ ستا دَ غضب له کبله ځما په بدن کښ
تندرستي نشته
او دَ خپلي ګناه په سبب مِ په هډوکو کښ
سلامتي نشته
۴ دي دَ پارَ چه بديئِ مِ له سره پورته شوي دي
او دَ درانه بار په شان ځما دَ پارَ زياتي
دروني دي
۵ پرهارونه مِ بدبويه او وراسته شول
دَ خپلي نادانئِ په سبب
۶ زه کوږ او بيحد کوږ شوي يم
ټوله ورځ غمګين ګرځم
۷ ملا مِ له سوزش ډکه ده
او په تن کښ مِ تندرستي نشته
۸ زه بي طاقت او زبلي شوي يم
او دَ خپل زړه له پريشانئِ نه غوغا کوم
۹ اي خداونده ټول شوق ځما ستا دَ حضوره
دَي
او ځما زويرګي له تا نه پټ نه دي
۱۰ زړه مِ درزيږي قوّت را نه لاړ شه
او رڼا دَ سترګو مِ هم ورکه شوه
۱۱ ياران او اشنايان مِ دَ آفت له سبب
بيل راته ولاړ دي
او خپلوان مِ لري لري راته ودريدل
۱۲ هغه چه ځما دَ ځان غوښتونکي دي دامونه
راته ږدي
او هغه چه ځما دَ غم غوښتونکي دي بدي
خبري راته کوي
او ټوله ورځ دَ دروغو فکرونه کوي
۱۳ مګر زه دَ کوڼ په شان شوم چه نه اوري
او دَ هغه ګونګ په شان چه خپله خوله نه پرانزي
۱۴ هو زه دَ هغه سړي په شان يم چه نه اوري
او چه په خوله کښ ئي حجت نه وي
۱۵ ځکه چه زه پتا اي يهوه اميد لرم
ته به ځواب راکړي اي يهوه ځما الله
۱۶ ځکه چه ما وويل چه هسي نه چه
هغوي په ما باندِ خوشحالي وکړي
چه پښي مِ وښوئيږي لويي را باندِ وکړي
۱۷ ځکه چه زه ګوډيدلو ته طيار يم
او خپل غم مدام په خپل نظر کښ لرم
۱۸ ځکه چه زه به خپلي بديَ اقرار کوم
دَ خپلي خطا دَ پارَ به پښيمان شم
۱۹ مګر دښمنان ځما چالاک دي او مضبوط
دي
او هغه چه په ناحقه کينه راسره کوي

دېرشول

۲۰ هغه چه دَ نيکئِ په بدله بدِي کوِي
دښمنان مِ شول ـ ځکه چه زه په نيکئِ
پسي ځم

۲۱ اي يهوه ما مه پرېږده
اي ځما الله لَه مانه مه لري کيږه

۲۲ ځما په مددکارِي کولو تلوار وکړه
اي ځما دَ نجات خداوندَ

## نه دېرشم

سردار دَ سرودکرو دَپارَ ـ دَ يدُوتُون په وزن ـ مزمُور
دَ داوُد

۱ ما وويل چه زه به خپلي لارِي وساتم
چه په ژبه خطا ونه کړم
زه به خپله خوله په قيزه سره وساتم
هرکله چه شرير ځما په مخ کښ وِي

۲ زه په خاموشئِ کښ کونګ شوم
او له نيکئِ کولو نه چُپ شوم
او غم ځما زيات شه

۳ زړه ځما په کوګل کښ وسه
چه ما فکر کاوه نو اور بل شه
او په ژبه مِ وويل

۴ په ‌آخر خپل مِ پوه کړه اي يهوه
چه ځما دَ ورځو حساب څه دي
ما پوه کړه چه زه څومره ناپايدار يم

۵ ګوره تا ځما ورځي دَ لويشتي په شان کړي
او ژوند ځما ستا په نزد هيڅ نه دي
په تحقيق سره هر سړي په ښه حال
کښ تش سا جوړ شوي دي (سلاه)

۶ په يقين سره هر سړي په حيال کښ ګرزي
په يقين سره په باطلو بي آرامه شوي دي
هغه جمع کوِي او نه پوهيږِي چه څوک به
ئي ټول کړِي

۷ اوس اي خداوندَ زه څه ته انتظار کوم
هم په تا ځما اميد دي

۸ ما له ټولو ګناهونو خپلو خلاص کړه
دَ احمقانو مِ مه پيغور کوه

۹ زه ګونګ وم خپله خوله مِ وازه نه کړه
ځکه چه تا دا کار کړي دي

۱۰ له مانه دِ خپل آفت لري کړه
زه ستا دَ لاس له ګذاره فنا شوم

۱۱ هرکله چه ته انسان دَ هغو دَ ګناه په
سبب په عذاب سره سزاوار کوي
بنائست دَ هغه دَ پتنګ په شان وِيلي کوي
نو په يقين سره هر يو سړي تش ساده (سلاه)

۱۲ اي يهوه دُعا ځما واوره ـ او فرياد ځما
ونغوږه
او په اوښکو ځما مه چپ کيږه
ځکه چه زه تا سره بيګانه يم
او سپين‌ږيرئ دَ خپلو پلرونو نيکو په شان

۱۳ له مانه نظر وګرزوه چه آرام وکړم

وړاند له هغه نه چه لاړ شم او بیانه شم

## څلوېښتم

سردار د سرودګرو دَپارَ- مزمور دَ داود

۱ ما په صبر سره یهوه ته انتظار وکه
نو هغه په ما باندِ راټیټ شه او فریاد
څما ئي واوریده
۲ هغه دَ هلاکت دَکندي نه اودَچکړو له
بوښتني نه بهر راویستلم
او پښي څما ئي په کَټَ باندِ کینبوي- او
قدمونه څما ئي قائم کړل
۳ او ده څما په خوله کښ یو نوي غزل راکړ
څمونږ دَ الله دَ پارَ جلال
ډیر به ئي ووینې او وبه ویرېږي
او په یهوه به تکیه وکړي
۴ مبارک دي هغه سړي چه په یهوه خپله
تکیه کوي
او دَ کبرجنو او دَ هغو سړو په لوري چه
په دروغو پسي ګرزي مخ نه اړوي
۵ اي یهوه څما الله ستا عجائبات چه تا کړي
دي ډیر دي
او ستا خیالات چه څما طرف ته دي
تا سره حساب نه شي کیدلي
که زه بیان کړم او دَ هغه په باب کښ خبري وکړم
نو دَ شمار کولو نه زیات دي
۶ تا ذبیحه او هدیه نه غوښتله
غوږونه څما دِ سوري کړل
تا دَ سوزولو قرباني او دَ خطا قرباني و
نه غوښتلي
۷ نو ما ووِ چه ګوره زه راځم
په کتاب کښ څما په حق کښ لیکلي دي
۸ اي څما الله زه ستا دَ مرضئِ په کولو باندِ
خوښ یم
هو توریت ستا څما په زړه کښ دي
۹ ما په لوي جماعت کښ ستا دَ صداقت
زیري وکړ
ګوره خپلي شونډي به بندي نه کړم
اي یهوه ته پوهیږې
۱۰ ما ستا صداقت په خپل زړه کښ پټ نه کړ
ستا دَ ریښتیني او ستا دَ نجات خبره مِ
بیان کړه
ما ستا شفقت او ستا ریښتیا له لویه جماعت
پټ نه کړل
۱۱ نه اي یهوه خپل رحمتونه له ما نه مه
منع کوه
ستا مِهرباني او ستا ریښتیا دِ مدام
څما ساتونکي وي
۱۲ ځکه چه بي شمارو بدیو ګیر کړم
او خپلو ګناهونو داسي نیولي یم چه طاقت
دَ لیدلو نه لرم
او دَ سر دَ ویښتو نه مِ په شمار زیاتي دي

او خپل زړه هم پرېښی یم
۱۳ اي یهوه مهرباني وکړه ما خلاص کړه
اي یهوه په مددګارئ ځما جلتي وکړه
۱۴ هغوي دِ خجل او شرمنده شي
چه ځما ځان دَ هلاکولو دَپاره لټوي
هغوي دِ بیرته وغورزولي شي او بي عزت دِ شي
چه ځما په نقصان خوشحالیږي
۱۵ هغوي دِ برباد کړي شي دَ هغوي دَ
شرمندګئ له سببه
چه په ما هاها کوي
۱۶ هغه ټول چه ستا طالبان دي په تا کښ دِ خورم وي
او هغه چه ستا دَ نجات مشتاق دي مدام دِ وايي
چه یهوه دِ لوي کړي شي
۱۷ زه مسکین او محتاج یم
نو هم خداوند په ما فکر کوي
ځما مددګار او ځما خلاصونکي ته یي
اي ځما الله ډیل مه کوه

## یو څلویښتم

سردار دَ سرود کولو دَپاره - مزمور دَ داؤد
۱ مبارک دي هغه سړي چه دَ مسکینانو غور کوي
یهوه به هغه دَ آفت په ورځو کښ خلاص کړي
۲ یهوه به هغه وساتي او ژوندي به یي کړي
او په زمکه کښ به مبارک وي
او ته به هغه دَده دَ دښمنانو په نفس پرې نږدي
۳ یهوه به هغه له دَ بیماري په کټ باندِ تکیه ورکړي
دَ هغه ټوله بچیاونړه دَ بیماري په وقت کښ وخنږي
۴ ما وویل اي یهوه په ما فضل وکړه
ځان ځما له شفا ورکړه - ځکه چه ما ستا خطا کړي ده
۵ ځما دښمنان ځما په حق کښ بدي خبري وايي
چه کله به مړ شي او نوم به یي کله ورک شي
۶ او که هغه ځما دَ کتلو دَپاره راشي نو دروغ وايي
دَ هغه زړه دَ هغه دَپاره بدي راټولوي
او چه بهر لاړ شي نو هغه خبري کوي
۷ هغه ټول چه له ما سره کینه لري ځما
په ضد پس پسي کوي
او ځما دَ نقصان تجویز کوي
۸ هغه وايي چه دَ شیطان څه شي په ده پوري نښتي دي
او س چه پروت دي بیا به هیچري پورته نه شي
۹ هم هسي هغه ځما لوي دوست - چه ما پر
باندِ تکیه وکړه چه ځما ډوډي یي وخوړله
لته یي را باندِ پورته کړي ده
۱۰ مګر ته اي یهوه په ما فضل وکړه او ما پورته کړه
چه له هغو نه بدله واخلم
۱۱ او په دي زه پوه شوم چه ته له ما نه خوش یي
ځکه چه دښمن مې بري را باندِ و نه موند
۱۲ او تا زه په دینداري کښ سنبال کړي یم
او په خپل حضور کښ دِ تر ابده پوري قایم کړیم
۱۳ مبارک دِ شي یهوه دَ اسرائیل الله
له ازله تر ابده پوري
آمین او آمین ✦

# دویم کتاب

## دوڅلویښتم

سردار دَ سرود کړو دپاره - دَ قورح دَ ځامنو مسکیل

۱ لکه چه اوسئ دَ نالي دَ اوبو دپارهَ
مشتاقه وِي
هم هسي ځما ځان مشتاق دي تا ته
اي الله
۲ ځان ځما دَ الله بلکه دَ اِلٰهِ الحي تږي دي
کله به لاړ شم او دَ الله په حضور
کښ به حاضر شم ؟
۳ ورځ او شپه مِ خپلي اوښکي خوراک شوي
ځله راته وايي چه ستا الله چرته دي
۴ او خپل نفس په خپل ځان باندِ تویه وم
چه ځنګ زه له هغهِ ټولي سره لاړم او دَ
الله کور ته ور سره تللم
دَ خوښئ او دَ تعریف په آواز سره لکه
چه اختر کوي
۵ اي ځما ځانَ ته ولي داسي خپه يي
او په ما کښ ولي بي آرامَ يي
ته امید په الله وکړه - ځکه چه زه به
اوس دَ هغه مدحه وکړم
دَ هغه دَ حضور دَ نجات دپارهَ
۶ اي ځما الله ځما ځان په ما کښ خپه دئ
له دي سببَ به دَ اُردَن په زمکه کښ
یاد کړم حرمُون دَ مصعَر له غره نه
۷ ستا دَ نولئ په آواز باندِ ژوره ژوري ته
ناري وهي .
ټول موجونه او چپي ستا په ما باندِ تيري
شولي
۸ یهوه به دَ ورځي په وقت کښ دَ خپلي
مهربانئ حکم وکړي
او دَ شپي په وقت به دَ ده غزل له ما سره وي
دعا به ځما دَ ژوندانه دَ الله په لوري وي
۹ زه به الله ته چه ځما کټ دي ووایم
چه زه دِ ولي هیر کړم
ولي دَ دښمن دَ ظلم له سببَ خپه لاړم
۱۰ لکه چه ځما هډونه په چیت پیت کیدلو
سره ځي
دښمنان مِ بشکنځل راته کوي
چه هغوئ هره ورځ راته وایي چه ستا
الله چرته دي
۱۱ اي ځما ځانَ ته ولي خپه يي
او په ما کښ ولي داسي بي آرام يي
ته امید په الله وکړه ځکه چه زه به
اوس دَ ده مدحه وکړم
دَ هغه دَ حضور دَ نجات دپارَ اي
ځما الله

## دري څلوېښتم

۱ اي الله ځما عدالت وکړه-او دَ بي ايمانه قوم
سره ځما دَپارَ مقدّمه وکړه
له رياکاره او له بدکاره سړي نه مِ
خلاص کړه
۲ ځکه چه ته ځما دَ قوّت الله يې تا زه
ولې لرې وغورزولم؟
او زه له دښمنانو له ظلمَ ولې په ژړا ځم
۳ خپل نوُر او خپله رښتيني را وليږه
هغوي دِ ځما هدايت وکړي
هغوي دِ ما ستا پاک غره ته راولي
او ستا خيمي ته
۴ پس زه به قربانګاه دَ الله ته ورشم
الله ته ځما کاملَ خوښي
او په سِتار به ستا مدحه وغږوم اي
الله ځما الله
۵ اي ځما ځانَ ته ولې خپه يې
او په ما کښ ولې داسي بي آرام يې
ته اميد په الله وکړه- ځکه چه زه
به اوس دَ ده مدحه وکړم
چه ځما دَ څهرې مددګار دَي او ځما الله

## څلور څلوېښتم

سردار دَ سرودګرو دَپارَ- دَ قورح دَ ځامنو مَسکِيل
۱ اي الله مونږ په خپلو غوږونو سره واوريدل
ځمونږ پلرونو او نيکونو مونږ ته ويلي دِي
دَ هغه کار په باب کښ چه دَ هغوی په ورځو
کښ په وړاندِنيو ورځو کښ تا وکړل
۲ چه تا په خپل لاس سره قومونه خارج کړل
او هغوي دِ مِشته کړل
او قومونه دِ وربړول او هغوي دِ وغوړول
۳ ځکه چه هغوي دِ په خپله توُره سره
دَ زمکي وارثان نه کړل
او نه خپلي متي وله نجات ورکه
بلکه ستا ښي لاس او ستا له متي
او ستا دَ حِضور نوُر
ځکه چه تا په هغوي مِهرباني وکړه
۴ اي الله ته ځما بادشاه يې
دَ يَعقُوب دَپارَ دَ خلاصِي حکم وکړه
۵ ستا په مددګارئ سره به مونږ خپل
دُښمنان وشړو
په نامه ستا به هغه کسان چه ځمونږ په
ضد پورته کيږي پايمال کړو
۶ ځکه چه زه په خپلي لِندي تکيه نه لرم
او نه به خپله توُره نجات راکړي
۷ بلکه تا له دُښمنانو نه نجات راکړ
او هغوي چه کِينه راسره کوي تا شرمنده کړل
۸ مونږ په الله ټوله ورځ فخر کړي دَي
او تر ابده به ستا دَ نامه مدحه کوُو (سلاه)
۹ ليکن تا اوس مونږ ترک کړُو او شرمنده دِ کړو
او ځمونږ له لښکرو سره نه ځي

۱۰ ته مو دَ دُښمن په مخ کښې را گرزوي
او هغوي چه له مونږ سره کينه لري
دَ خپل ځان دَپاره به مو لوټ کړي
۱۱ تا مونږ دَ خوړلو دَپاره مقرر کړو لکه
دَ گډو په شان
او دَ غير قومونو په مينځ کښ به مو
تار په تار کړي
۱۲ تا خپل اُمّت مفت خرڅ که
او دَ هغو له قيمتَ دِ هيڅ نَفَع
وانه خِستله
۱۳ ته به مو دَ خپلو گاونډيانو پيغور کړې
دَ گيرچاپير دَ خلقو به مو ټوقه او
مسخره کړي
۱۴ دَ غير قومونو په مينځ کښ به مو يو
متال کړي
دَ امّت په مينځ کښ به مو دَ سر خوځولو
۱۵ او رسوائي څما تولهٔ ورځ څما په نظر کښ دَه
او شرمندگيِ دَ مخ څما زه پټ کړم
۱۶ په سبب دَ آواز دَ تُهمت کوونکي او دَ
ملامت ويونکي
په باعث دَ دښمن او دَ بدل اخستونکي
۱۷ دا ټول په مونږ باندِ راغلي دِي- مگر ته
مو هير نه کړې
او ستا په وعده مو بې‌وفائي و نه کړه
۱۸ نه مو زړه له تا نه وگرزيده
او نه څمونږ پښي ستا له لارې گرزيدلي دِي
۱۹ مگر تا دَ گيدړو په مکان کښ مات
مات کړو
او دَ مرگ په سوري سره دِ پټ کړو
۲۰ که چرِ مونږ دَ خپل الله نُوم هير کړي وي
يا مو دَ بل معبود په لوري خپل لاسونه
پورته کړي وَي
۲۱ نو الله به دَدي تحقيقات و نه کړي څه؟
څکه چه دي دَ زړه په رازونو خبر دَي
۲۲ په يقين سره مونږ ټوله ورځ ستا دَپارَ
مړه کيږُو
دَ ذبح دَپارَ گډورِي گڼلي کيږُو
۲۳ وِښ شه ولي اوده کيږې اي خداوندَ
پورته شه او تر ابده پورې مو مه
غورزوه
۲۴ ته ولي خپل مخ پټوې ؟
او څمونږ غم او ظلم هيروې
۲۵ څکه چه ځان څمونږ په خاورو کښ
نسکور شه
گيډه څمونږ په زمکه پورې ونښته
۲۶ څمونږ دَ مددگاريِ دَپارَ پورته شه
او دَ خپلي مِهرباني له سببَ څمونږ
فديه ورکړه

## پنځه څلويښتم

سردار دَ سرودگرو دَپارَ- دَ شوشَنِيم په وزن دَ

قورح دَ ځامنو مَسکِيل-غزل دَ معشوقو دي
۱ ځما په زړه کښې ښه خبره جوش کوِي
زه هغه ښيزونه چه ما دَ بادشاه په حق
کښې جوړ کړِي دِي بيان ئې کوم
ځما ژبه دَ ماهر کاتب قلم ده
۲ په ښائيست کښې له بنيِ آدمَ زيات يې
ستا په شُونډو بانډِ کرم توي شوي دي
له دي سببَ الله ته ترا بدَ پوري مبارک
کړي يي
۳ اي جبّاره خپله تُوره په خپلي ملا وتړه
هو خپل زينت او شوکت
۴ او په خپلي اقبال مندي سره سور شه -
او دَ رښتنيِ او دَ فروتنيِ او دَ صداقت
له سببَ
او ستا ښي لاس به تا ته دهشتناک
کارونه درو ښيي
۵ ستا غشي تيره دِي
اُمتونه ستا دَ لاندِ پريوزي
او دَ بادشاه دَ دُښمنانو په زړه کښې دِي
۶ اي الله ستا تخت ترا بدالاباد پوري دي
دَ راستيِ اَمصا ستا دَ بادشاهيِ اَمصا ده
۷ تا په صداقت مِينه وکړه او شرارت
سره دِ کينه وکړه
له دي سببَ الله ستا الله ته مسح کړي يي
دَ خوشحاليِ په تيلو سره له خپلو ملګريو نه

۸ ستا له ټولو جامو نه دَ مرو او دَ عُودو
او دَ ټج خوشبويي راځي
چه په ريابونو ئې دَ هاتي دَ غابښونو په محلو
کښې خوشحاله کړي
۹ دَ بادشاهانو لُونړه ستا په عزتناکو کښې دِي
او بيګمه ستا په ښي لاس ولاړه ده دَ
اوفير په سرو زرو
۱۰ اي لُوري واوره او ګوره - او غوږ راته ونيسه
خپل قوم او دَ خپل پلار کور هير کړه
۱۱ نو بادشاه به ستا دَ حسن آرزومند شي
ځکه چه ستا خداوند دي - نو دَ هغه
تعظيم کوه
۱۲ او دَ طُور لُور به دَ پيشکشيِ سره راشي
او دولتمند خلق به ستا دَ مخ دعا کوِي
۱۳ شاه زادګيِ بالکلّ جلالي ده
جامي ئې په سرو زرو سره جړاؤ کړي
شوي دِي
۱۴ هغه به بادشاه ته په کښيده کړي
شويو جامو کښې راوستي شي
پيغلي سُهيليِ چه په دي پسي ځي
تا ته به راوستلي شي
۱۵ هغوي به په ښاديِ او به خوشحاليِ سره
درورسيږي
او دَ بادشاه په محل کښې به داخلي شي
۱۶ ستا دَ پلارانو په ځاي کښې به ستا ځامن

وِي
تَه بَه هغوِي دَ ټولي زمکي سرداران کړي
١٧ زَه بَه پُښت پَه پُښت ستا نُوم يادګار وګرزوم
نو ټول اُمتونه به ترابدالآباد پوري ستا مدحه کوِي

## شپږ څلويښتم

سردار دَ سرودګرو دَپاره- دَ قورح دَ څامنو مزمور- دَ الموت په وزن باندِ- غزل

١ الله څمونږ پناه او زور دي
دَ سختيو په وقت کښِ ډير لايق مددګار دي
٢ له دي سبب به مونږ نه ويريږو که زمکه بدله شِي
او چه غرونه دَ قعرِ درياب په مينځ کښِ وغورزولي شِي
٣ که څه اوبه غړنبيږي- او خټک پورته کړي شِي
که څه دَ هغو دَ موجونو نه غرونه وخوځيږي (سلاه)
٤ يو سيند دي چه دَ هغه لَختي دَ الله ښهر خوشحال کوِي
دَ حق تعالیٰ دَ مسکنونو پاک ځاي
٥ الله دَ هغه په مينځ کښ دي- هغه به هيڅکله نه خوځولي شِي
الله به دَ هغو مدد وکړِي هو صبا وختي
٦ غيرو قومونو ناري ووهلي- بادشاهتونه وخوځيدل
دَه آوازوکه زمکه وِيلي شوله
٧ دَ لښکرو يهوه له مونږ سره دي
او دَ يعقوب الله څمونږ اوچت برج دَي (سلاه)
٨ راشئ کاروته دَ يهوه وګورئ
چه څنګه څنګه ويراني ئي په زمکه کښ کړي دِي
٩ دي دَ زمکي تر اخر پوري جنګونه موقوفوِي
ليندي ئي ماتوِي او نيزي ئي دوه ټکري کوِي
او ګاډِي ئي په اور سيځي
١٠ وارو کړئ او پوه شئ چه زه الله يم
زه به دَ غيرو قومونو په مينځ کښ پورته کړي شم زه به په زمکه کښ پورته کړي شم
١١ دَ لښکرو يهوه له مونږ سره دي
دَ يعقوب الله څمونږ اوچت برج دي (سلاه)

## اوه څلويښتم

سردار دَ سرودګرو دَپاره- دَ قورح دَ څامنو مزمور

١ اي ټولو خلقو لاسونه ووهئ
دَ فتح په آواز سره الله ته ناري وکړئ
٢ چه يهوه حق تعالیٰ هيبتناک دي
په ټوله زمکه باندِ لوي بادشاه دي
٣ قومونه به تر مونږ لاندِ کړي

او غیر قومونه به ځمونږ ترپښو لاندې
۴ ځمونږ میراث به ځمونږ دپاره غوره
کړي
دَ یعقوب فخرچه په ده يې مینه وکړه (سلاه
۵ الله په نارو سره پورته شه
هو یَهوَه دَ تُورَيُ په آواز سره
۶ دَ الله مدح وغږوئ مدح وغږوئ
ځمونږ دَ بادشاه مدح وغږوئ مدح
وغږوئ
۷ ځکه چه الله دَ ټول جهان بادشاه دَي
په هوښیاريِ مدح وغږوئ
۸ الله په غیر قومونو باندې بادشاهت کوي
الله په خپل مُقَدَّس تخت باندې کښیني
۹ دَ قومونو امیران جمع شول
دَ اَبراهام دَ الله له خلقو سره
ځکه چه ډالونه دَ جهان دَ الله دِي
او دَي بې شانه مُتَعالي دَي

## اته څلوېښتم

غزل - دَ قورح دَ ځامنو مزمور
۱ یهوه بزرګ دَي او ډیر ممدوح
ځمونږ دَ الله په ښهرکښ دَده په مُقَدَّس
غره باندې
۲ ښائسته دَي په اوچت والي کښ دَ ټولې
زمکي خوښي
دَ صیحون غر دَي دَ شمال په ډډو
دَ بزرګ بادشاه دارُالسَّلطَنَت
۳ دَ هغه په محلُونوکښ الله مشهور
دَي چه اوچت برج دَي
۴ ګوره چه بادشاهان سره جمع شول
او سره تیر شول
۵ هغو ولید نوحیران شول
پریشان شول او وتښتیدل
۶ هغه ځاي دهشت ونیول
او دَ ننګانه په شان درد وربانديِ راغي
۷ دَ نمرخاته په باد سره
دَ ترسیس جهازونه ته ماتوي
۸ لکه چه مونږ اوریدلي دِي هم هغه
شان مو ولیدل
دَ لښکرو دَ یهوه په ښهرکښ ځمونږ
دَ الله په ښهرکښ
الله به هغه ترابده پوري په قرار لري (سلاه
۹ اي الله مونږ ستا مِهرباني یاده کړه
ستا دَ هیکل په مینځ کښ
۱۰ اي الله لکه چه ستا نُوم دَي
هم هسي ستا مدحه دَ زمکي تر
اُخره پوري ده
ښي لاس ستا له صداقت ډک دَي
۱۱ دَ صیحون غر دِ خوشحال وِي
دَ یهودا لُونړه دِ خوښي کوي
ستا دَ عدالتونو په سبب

۱۲ په صیحون گرزئ او طواف ترکوئ
او برجونه ئې وشمارئ
۱۳ دَده په بنهرپناه زړه ولګوئ
او دَده محلي په غور سره ووینئ
دَپارَ دَدي چه راتلونکي پیړیو ته ئې
خبر ورکړئ
۱۴ الله تر ابدالاباد پوري ځمونږ الله دَي
هغه به تر مرګه پوري ځمونږ هادي وِي

## نه څلویښتم

سردار دَ سرودګرو دَپارَ: دَ قورح دَ ځامنو مزمور

۱ اي تمامو قومونو دا واورئ
اي ټولو اوسېدونکیو دَجهان غوږ ونسئ
۲ هم اصلو هم لویو
دولتمندو دَ محتاجانو سره
۳ ځما خوله به دَحکمت خبري کړي
او تفکر ځما دَ زړه به په فهم سره وِي
۴ زه به خپل غوږ دَ یوه مثال په لوري
ونسم
او زه به دَخپلي کنایي خبره په ستار سره
ظاهره کړم
۵ زه به دَ آفت په ورځو کښ څله وېره کوم
هغه وقت چه بدِي ځما پوندي ګیري کړي
۶ هغه چه په خپل دولت تکیه کوِي
او دَخپل مال په کثرت فخر کوِي
۷ هیڅوک دَ خپل ورور فدیه نه شي ورکولي
او نه به دَ هغه دَپارَ کفاره الله ته ورکړي
۸ (ځکه چه دَ هغو دَځان فدیه ګران بها دَه
او دا کار به تر ابده پوري بند پاتي وِي)
۹ چه هغه به مدام ژوندي وِي
او هرګز به خرابي ونه ویني
۱۰ ځکه چه هغه ګوري چه دانایان مري
جاهل او حیوان سره نابود کیږي
او خپل دولت نورو ته پرېږدي
۱۱ دَ هغو خیال دا دَي چه دَ هغو کورونه
به تر ابده پوري وِي
او مسکنونه دَ هغو به پښت په پښت
هغوي خپله زمکه په خپلو نومونو
سره بلي
۱۲ مګر انسان په عزت کښ نه پاتي کیږي
هغه دَ حیوانو په شان دَي چه فنا کیږي
۱۳ دا لار دَ دوي له احمقئ دَدوي ده
او له دوی نه وروستو خلق به دَدوي
په خبرو باندِ خوښیږي (سلاه
۱۴ دوي دَ ګډو په شان دَ هاویه دَپارَ
مقرّر شوِي دِي
مرګ به دَ هغه شپون وِي
او راستان به صحر په دوي باندِ تسلّط کوِي
دَ هغه ښائستګي به دَ هاویه دَ خوړلو دَپارَ
شي چه دَ هغه دَپارَ استوګنه نه وِي
۱۵ لیکن الله به ځما ځان دَ هاویه له قبضي

نه فدیه ورکړي
ځکه چه دي به مِ منظور کړي (سلاه
۱۶ هر کله چه يو سړي دولتمند شي نو
مه ويريږه
شر کله چه دَ کور جلال ئي زيات شي
۱۷ ځکه چه هغه به دَ مرګ په وقت هيڅ
له ځانه سره يو نه سي
او دَ هغه جلال به ورپسي ورکوز نه شي
۱۸ څو چه ژوندي وه نو خان ته ئي مبارک
وايه
او که ته دَ خپل ځان دَپارَ نيکي کوي-
نو خلق به ستا تعريف کوي
۱۹ هغه به دَ خپلو پلرونو پيړئ ته لاړ شي
هغه به هيچري نُور ونه ويني
۲۰ انسان چه په عزت کښ دي-او نه پوهيږي
دَ حيوانانو په شان دي چه فنا کيږي

## پنځوسم

مزمُور دَ آصف

۱ دَ خدايانو الله يهوه ويلي دي
او زمکه ئي له نمرخاته نه ترنمر پريواته پوري
طلب کړله
۲ له صيحونه چه دَ ښايستګئ کامليت دَي
الله روښانه شه
۳ خمونږ الله به راشي-او چپ به نه وي
او په حِضُور کښ به ئي اور بليږي
او په ګيرچاپيره به ئي سخت طوفان وي
۴ هغه به پورته آسمانونو ته آواز کوي
او زمکي ته چه دَ خپلو خلقو عدالت وکړي
۵ خما تقوىٰ دارانو له راجمع کړئ
چه له ما سره ئي په ذبحه سره وعده
کړي ده
۶ آسمانونه به دَ ده صداقت ظاهر کړي
چه الله په خپله عدالت کونکي دَي (سلاه
۷ اي خما خلقو واورئ زه به خبره وکړم
اي اسرائيل زه به په تا ګواهي ولم
زه الله ستا الله يم
۸ زه به دِ دَ دغو دَپارَ ملامت نکړم
او ستا سيځونکي قربانئ مدام خما په نظر
کښ دي
۹ زه به ستا دَ کور سخوندر وانه خلم
او نه ستا دَ شپلونو بزي
۱۰ ځکه چه ټول دَ ځنګل وحشيان خما دي
غوايان په زرګونو غرونو باندې
۱۱ زه ټول مارغان دَ غرونو پيژنم
او دَ صحرا ښاور خما دي
۱۲ که زه وږي شم تا به خبر نه کړم
ځکه چه دنيا او دَ هغې معموري خما ده
۱۳ زه دَ غوايانو غوښي خورم څه ؟
يا دَ بزو ويني ښښم څه ؟
۱۴ ذبحه کړه الله ته دَ سلامتيا ذبحه

او دَ حق تعالیٰ په حِضُور نذرونه ادا کړه
۱۵ او دَ غم په ورځ کښ ما ته فریاد وکړه
نو زه به تا خلاص کړم — ته به څما
جلال وساتي
۱۶ مګر الله شریر ته وايي
چه څما دَ حکمونو دَ بیانولو سره ستا څه
کار دَي ؟
او څله څما وعده په خوله راوړي ؟
۱۷ هرکله چه دَ تعلیم سره کینه کوي
او څما خبري په شا غورزوي
۱۸ چه ته غل وِيني- نو له هغه سره
راضِي يي
او له زناکارانو سره شریک شوي يي
۱۹ او خپله خوله په شرارت پرانزي
او ژبه دِ دَ فریب بهاني جوړوي
۲۰ چه ته کښیني نو دَ خپل ورور غیبت کوي
او هم دَ خپلي مور په ځوي تهمت لګوي
۲۱ تا داکول او زه چپ وم
او تا داګمان کاوه چه زه هم ستا په شان يم
مګر زه به دِ ملامت کړم او هغه به په
ترتیب سره ستا دَ وړاندِ کیږدم
۲۲ په دي وپوهیږي کښه اي چه تاسو الله
هیروئِ
هسي نه چه زه مو ټوټې-ټوټې کړم او
هیڅوک مو خلاصونکي نه وِي
۲۳ هغه چه دَ شکرګذارئِ ذبح کوِي څما
جلال ستايئِ
او هغه چه خپلي لاري تیاروي
دَ الله نجات به وښيم

# یو پنځوسم

سردار د سرودګرو دَ پارَ- مزمور دَ داوُد په هغه
وقت چه ناتن پیغمبر ده ته راغلي وه پس له هغه
چه بتِ شبع ته ور ننوتي وه
۱ اي الله لکه چه ستا مِهربانِي ده په ما
باندِ فضل وکړه
لکه چه ستا رحمتونه ډیر دِي هومره څما
ګناهونه محوه کړه
۲ له خپلي ګناه نه مِ بنه ووینځه
او له خپلي خطا نه مِ پاک کړه
۳ ځکه چه زه په خپلو بدو اقرار کوم
او څما خطا همیشه څما په مخ کښ ده
۴ ما ستا هو خاص ستا خطا مِ کړي ده
او ستا په نظر کښ مِ بدِي کړي ده
دي دَ پارَ چه ته خبري کوي پاک کړي
شي
او چه ته عدالت کوي نو پاک ظاهر شي
۵ ګوره ما په ګناه کښ صورت نیولي دَی
او په خطاکارئِ سره مور په حمل
اخستي یم
۶ ګوره ته دَ دننه رښتيني خوښوي

نو ته ما ته په باطن کښ حکمت وښيه
۷ په زوفا سره م صاف کړه
چه پاک شم
ما ووينځه چه له واورې نه زيات
سپين شم
۸ ما ته دَ خوښئ او دَ خوشحالئ خبره
واوروه
چه هغه هډوکي چه تا مات کړي دي
خوشحال شي
۹ خما له خطا نه خپل مخ وګرزوه
او ټولې بدئ خما محوه کړه
۱۰ اي الله په ما کښ پاک زړه پيدا کړه
او نيک روح خما په باطن کښ تازه کړه
۱۱ ما له خپله حضورَ مه شړه
او خپل مُقَدَّس روح له ما نه مه اخله
۱۲ دَ خپل نجات خوښي ما له بيا راکړه
او په خپل آزاد روح سره م سنبال کړه
۱۳ نو زه به ګناهګارانو ته ستا لارې وښيم
او خطاکاران به ستا په لورې دروګرزولي
شي
۱۴ اي الله خما دَ نجات الله ما له خونونو نه وساته
نو ژبه خما به ستا صداقت وغړوي
۱۵ اي خداوندَ شونډې خما پرانزه
چه خوله خما ستا صداقت بيان کاندِ
۱۶ ځکه چه ته په ذبحې نه خوشحاليږې چه
نه ئې ادا کړم
او نه په سيځونکي قربانئ خوشحاله کيږې
۱۷ ذبحې دَ الله خسته روح دي
اي الله ته به خسته او غمجن زړه سپک
و نه ګڼړې
۱۸ له صيحونه سره په خپلې خوښئ نيکي وکړه
او ديوالونه دَ اورشليم جوړ کړه
۱۹ نو ته به دَ صداقت په ذبحو کښ او په
سيځونکيو قربانيو کښ او په سيځونکيو
کاملو قربانيو کښ خوشحال شې
او دوې به ستا په قربانګاه باندِ سخوندر
پوره کړي

## دوه پنځوسم

سرداد دَ سرودګرو دَ پاره - دَ داؤد مَسکيل - چه
دوايګ اَدومِي راغي او ساؤل ئې خبر که - ورته
وئې ويل - چه داؤد دَ اَخيملک کورته راغلي دي

۱ اي زورَآورَ ته ولې په بدئ فخر کوې
دَ الله مهرباني هر ورځ ده
۲ ستا ژبه دَ تکې تدبير کوي
دَ تيرې چړې په شان دَ تګئ کار کوي
۳ ته په بدئ له نيکئ نه مينه کوې
او په دروغو دَ صدق دَ ويلو نه (سلاه)
۴ ته دَ هلاکت په ټولو خبرو مينه کوې
اي فريب ويونکي ژبې
۵ دغه شان به دِ الله تر اَبَدُالآبادَ پورې

خراب کاندِ
هغه به تا واخلي او تا به له خيمي نه
بهر راکاږي
او دَ ژوندانه له زمکي نه به دِ بېخ وکاږي
(سلاه)
۶ صادقان به يې هم ووينِي او وبه وېرېږي
او پر پوري به وخاندِي او وبه وايي
۷ چه گوره دا هغه سړی دی چه الله يې
خپل قوت نه کاڼه
مگر دَ خپل مال په کثرت يې تکيه وکړه
او په بدئ يې خپل ځان قوي کړ
۸ ليکن زه دَ الله په کور کښ دَ زېتونه دَ
زرغوني ونې په شان يم
او دَ الله په رحمت تر ابدالآبادَ پوري
تکيه کوم
۹ مدام به ستا شکر کوم ځکه چه تا داسي
وکړل
او زه ستا دَ نامه انتظار کوم - ځکه چه
ښه دَي ستا دَ تقویٰ دارانو په مخ کښ

## دري پنځوسم

سردار دَ سرودکرو دپارَ - دَ محلت په وزن باندِ
مَسکيل دَ داؤد
۱ احمق په خپل زړه کښ ويلي دِي چه
الله نشته
هغوي خراب شول هغوي پليت کارونه
وکړل
هيڅوک نيکي کونکي نشته
۲ الله له آسمانونو نه په بني آدم باندِ
نظر وکه
چه ووينِي چه څوک دي چه وپوهيږي
چه دَ الله لټونکيَ شته
۳ هر يو له هغوي نه بېرته شه ټول
سره فاسد شول
هيڅوک نيکي کونکيَ نشته يَو هم نشته
۴ هغه مفسدان نه پوهيږي څه؟
چه قوم ځما دَ ډوډیٔ په شان خوري
او دَ الله نوم نه اخلي
۵ هغوي په ډيري وېري کښ وُو
چه هلته وېره نه وه
ځکه چه الله دَ هغو هډونه چه تا
ته يې خيمه وهلي ده پراگنده کړي
دي
تا هغه شرمنده کړي دِي ځکه چه الله
شړلي دِي
۶ کاشکي چه دَ اسرائيل نجات له صيونه
وتلي وَي
هرکله چه الله دَ خپل قوم قيديان
راوگرزوي
نو يعقوب به خوښ شي - او اسرائيل
به خوشحالَ شي

## څلور پنځوسم

سردار دَ سرود کړو دَ پارَ - په ربابونو باندِ -
مَسکِيل دَ داؤد - به هغه وقت چه زيفيان راغلل
او ساؤل ته ئي ووېل - چه داؤد خپل ځان په مونږ
کښ نه پټوي څه ؟

۱ اي الله په خپل نامه سره نجات راکړه
او په خپل قوّت سره ئِم انصاف وکړه
۲ اي الله دُعا ځما واوره
او دَ خولې خبرهِ ئِم ونغوږه
۳ ځکه چه بېګانه خلق په ضد راته پورته
شوي دي
او ظالمان ځما دَ ځان په طلب کښ شوي
دي
الله ئي دَ خپل ځان دَ وړاندِ کښېنولے
نه دَے (سلاه
۴ ګوره مددګار ځما الله دي
خداوند ورسره دَے - چه ځما ځـان
سنبالوي
۵ دَے به ځما دُښمنانو ته بدي وروجارباسي
او په خپلې راستئ سره ئي تباه کړه
۶ دَ نفل په قربانئ سره به تا له زه ذبحَ وکړم
او اي يهوه زه به ستا په نامه شکر وکړم
ځکه چه ښه دَے
۷ دَ پارَ دَ دي دِ زه له ټولو غمونو نه خلاص
کړے يم
او په خپلو دُښمنانو باندِ سترګو ئِم خوښي
وليده

## پنځه پنځوسم

سردار دَ سرود کړو دَ پارَ - دَ رباب په تارونو باندِ -
مَسکِيل دَ داؤد

۱ اي الله دُعا ځما واوره
او ځما له زاريو مه پټيږه
۲ ما ته غوږ کېږده او ما له ځواب راکړه
زه په خپل غم کښ بي آرامَ او پريشانَ يم
۳ دَ دُښمن دَ آواز له سببَ
او دَ شرير دَ ظلم له سببَ
ځکه چه دوي په ما باندِ بدي اچوي
او په غضب کښ ما تنګوي
۴ زړه ځما په کوګل کښ سخت درد کوي
او دَ مرګ هول را باندِ لويدلے دي
۵ وېرهِ او لړزه په ما باندِ راغلل
او هيبت را باندِ غالب شه
۶ او وِئم وېل چه کاشکي چه ما دَ کوترې
په شان وزر لرلے
چه والوتلے او آرام مِ وکړې
۷ هو زه به لرې ګرځيدلم
او په ځنګل کښ به تېکاو کيدلم (سلاه
۸ زه پناه ته زر ورغلي دَي
له تېز بادَ او له طوفانه
۹ اي خداوندَ هغوي هلاک کړه او په ژبه

کښې ئې فوق وکړه
ځکه چه ما په ښهر کښې ظلم او فساد
لیدلي دي
۱۰ ورځ او شپه دَ هغه په دیوالونو باندې گرځي
بدي او شرارت دَ هغه په مینځ کښې دي
۱۱ دَ هغه په مینځ کښې هم شرارت دَي
او له کوڅو نه ئې فریب او ریاکاري نه ووزي
۱۲ ځکه چه دښمن نه وه چه ما ته ئې
ښکنځل وکړل
نو به مې صبر کړې وه
او نه هغه وه چه ما سره ئې کینه وکړه
په ما لوي شه
نو زه له هغو نه پټیدم
۱۳ مگر ته وې یو سړي چه ځما برابر وې
ځما ملگري او ځما دوست
۱۴ چه مونږ به یوځاي خوږې خبرې سره کولې
دَ الله په کور کښې له خلقو سره تللو
۱۵ په هغوي دې ناگهاني مرگ راشي
ژوندي دې هادیز ته کوز شي
ځکه چه شرارت دَ هغو په استوگنو دَ
هغو په مینځ کښې دي
۱۶ زه به الله ته ناري کړم
او یهوه به ما له ثواب راکړي
۱۷ نماښام او صبا او دَ غرمې په وقت فریاد
او ژړا کوم
او هغه به ځما آواز واورې
۱۸ هغه ځما دَ ځان په سلامتیا کښې فدیه
ورکړې له جنگ نه چه ځما مخالف وه
ځکه چه ډیر ووُ چه له ما سره ئې جنگ
وکړ
۱۹ الله به واورې - او هغه به مبتلا کړي
هغه چه دَ قدیمه کښېناستونکي دَي -
رسلاه
هغوي چه تغیّر ورله نشته - او چه نه الله نه
نه ویریږي
۲۰ خپلو صلحه کوونکو ته ئې خپل لاسونه
واچول
خپله وعده ئې ماته کړه
۲۱ دَ هغه خوله پسته وه لکه دَ کچو
مگر په زړه ئې جنگ وه
خبرې ئې له تیلو نه زیاتې نرمې دې
مگر بستلي شوي توري دي
۲۲ خپل بار په یهوه باندې وسپاره چه
هغه به مدد درکړي
او صادقان به هیڅ ورې خوځیدلو ته ور
نه کړي
۲۳ مگر ته اي الله هغوي به دَ هلاکت
په کوهي کښې ورکوز کړې
خونیان او ټگان سړي به ترخپل نیمه
عمر پوري ژوندون و نه کړي

مکر زه به په تا باندِ تکیه وکړم

## شپږ پنځوسم

سردارِ دَ سرودکرو دَپارَ - دَ یُونَسَ اِلِمَ رَحُوقِیمَ پوزک
باندِ - دَ داوُد مزمُور - مِختَام - په هغه وقت کښ - چه
فلسطیانو په گَت کښ دي ونیو

۱ اي الله په ما باندِ فضل وکړه ځکه چه
بنِي آدم غواړِي چه ما ونغرِي
ټوله ورځ په جنګ سره ظلم را باندِ کوِي
۲ دُښمنان څما ټوله ورځ څما نغرِدل غواړي
ځکه چه هغوی ډیر دِي په غرور
راسره جنګ کوِي
۳ هرکله چه زه په ویره کښ یم
نو په تا به تکیه وکړم
۴ په الله کښ به دَ هغه دَکلام حمد ووایم
په الله باندِ ما تکیه وکړه - او زه به ونه ویریږم
چه بشر به څما څه وکړِي ؟
۵ هغوي ټوله ورځ څما خبري بدله وِي
او دَ هغوي ټول فکرونه په ما باندِ دَ بدیٔ
دَپارَ دِي
۶ هغه سره ټول شول او ځانونه پټوِي
دوي څما قدمونه ګورِي
لکه چه څما دَ ځان دَپارَ ئي انتظار کړي
دَي
۷ هغوي به دَ بدیٔ په سبب خلاص شِي څه؟
اي الله ته په خپل قهر سره دا قومونه
راغورزوه
۸ ته څما ګرزیدل شماري
او ښکي څما په خپلي ښیښي کښ ساتي
هغه ستا په دفتر کښ نه دي څه ؟
۹ هرکله چه زه فریاد وکړم - نو دښمنان
څما به پسته وګرزي
دا زه پوهیږم چه الله څما دَپارَ دَي
۱۰ الله ته به زه دَ هغه دَکلام مدحه وکړم
په یهوه کښ به زه دَ هغه دَ کلام
مدحه وکړم
۱۱ ما په الله باندِ تکیه وکړه - زه به و
نه ویریږم
چه اِنسان په ما څه کولي شِي
۱۲ اي الله ستا نذرونه په ما باندِ دِي
او زه به تا ته شکرګذاريِ ادا کړم
۱۳ ځکه چه تا څما ځان له مرګ خلاص که
تا څما پښي دَ ښویدِ دلو نه ساتلي نه
دِي څه ؟
چه دَ الله په حِضُور کښ وګرزم
دَ ژوندیو په نُور کښ

## اوو پنځوسم

سردار دَ سرودکرو دَپارَ - دَ اَلتَشَ هِیتْ پوزک
باندِ مزمُور دَ داوُد - مِختَام - په هغه وقت چه
له ساؤل نه په غار کښ وتښتیده

۱ په ما باندِ فضل وکړه. اي الله فضل وکړه

ځکه چه ځان ځما ستا کښ پناه راوړي دَه
هو زه به ستا دَ وزرو تر سورِي لاندِ پناه
ونِيسم
ترهغه پورې چه دا آفتونه تير شي
۲ زه به الله تعالیٰ ته فرياد وکړم
الله ته چه هرڅه ځما دَپارَ پوره کوِي
۳ دي به له آسمانه راواستوِي-او ما له
به نِجات راکړِي
هغه چه به ما پسې کرزِي او تهمت را
باندِ لګوِي (سلاه
الله به خپله مِهرباني اوخپله رښتني
واستوِي
۴ ځان ځما دَ زمريو په منځ کښ دي
اوزه دَ آتش مزاجو سړيو په منځ کښ ځملم
هو په بني‌آدم کښ چه غاښونه ئې نېزې
او غشي دِي
او ژبه ئې تيره توره ده
۵ اي الله ته په آسمانونو باندِ اوچت شه
جلال ستا دِ په ټوله زمکه باندِ وي
۶ هغوځما دَ پښو دَپارَ دام ايښي دَي
ځان ځما کوږ شوي دَي ٭
هغوځما په مخ کښ کوهي وکنود
په خپله په کښ پريوتل (سلاه
۷ ځما زړه ټينګ دَي اي الله ځما زړه
ټينګ دَي

زه به غزل ووايم هو ره به مدح وغږوم
۸ وِيښ شه اي ځما جلاله وِيښ شه اي
رباب او سِتاره زه به سحر وِيښ شم
۹ اي خداوندَ زه به دَ خلقو په منځ کښ
ستا مدحه وکړم
زه به دَ قومونو په منځ کښ ستا مدح
ووايم
۱۰ ځکه چه مِهرباني ستا دَ آسمانونو
دَپاسَ لويه ده
اورښتني ستا تر اوريځو پورې
۱۱ اي الله ته په آسمانونو باندِ اوچت شه
اوجلال ستا دِ په ټوله زمکه دَپاسَ شي

## اته پنځوسم

سردار دَ سرود کرو دَپارَ- دَ اَلتَش هِيتْ پوزن
مزمُور دَ داوُد مُختام

۱ تاسو په چپ والي کښ دَ صداقت خبري
کوئ څه ؟
اي بني‌آدمو تاسو په راستئ سره
عدالت کوئ څه؟
۲ هو په زړه کښ بد کارونه کوئ
او دَ خپلو لاسونو ظلم په زمکه کښ
تولوئ
۳ شريران له رَحِمَ بيګانه دِي
له پيدا کيدلو نه کرزي او دروغ وائي
۴ دَهغو زهر دَ مار دَ زهرو په شان دي

او دَ هغه كانړه منګور په شان دِي چه خپل
غوږ بند كړي
۵ چه دَ پاړوګرو آواز نه اورِي
كه چرِي لوي لوي منترونه پړِ پُوكي
۶ اي الله ته غابښونه دَ دوي په خوله
كښ مات كړه
اي يهوه دَ زمرو دَ بچو داړي وباسه
۷ دَ جارِي اوبو په شان دِ ويلي شي
هر كله چه خپل غشي په كوړت كړِي
هسي دِ شِي لكه چه پرِي كړي شوي وِي
۸ هغوي دِ دَ كُوچِي په شان وِيلي كيږِي
او تيريږي
دَ ښځي دَ كيدي دَ زيان په شان چه
نمر ئې ليدلي نه وِي
۹ له هغه نه وړاندِ چه ستاسي په ديګچو
پسي به اغزو سره اوربل شي
هغه به ئې به بړبوړكي سره يوسي شنه او
سوزيدونكي برابر
۱۰ صادق به خوشحال شي چه بدله اخستل
ووِيني
هغه به خپلي پښي دَ شرير په وِينو كښ
ووِينځي
۱۱ او سړِي به ووايي چه په حقيقت سره دا
دَ صادقانو سړيو دَپارَ اجر دَي
بي شَكَ يو الله شته چه په زمكه كښ
عدالت كوِي

## نه پنځوسم

سردارِ دَ سرودګرو دَپارَ - دَ الْتَشْ هِيتْ په وزن باندِ
مزمُور دَ داؤد - مِخْتام - چه ساؤل وليږل او دَ هغه
دَكور څوكي ئې كوله چه دي ووژنِي

۱ اي څما الله ما له خپلو دُښمنانو نه خلاص
كړه
له هغونه مِ سرفراز كړه چه په دُښمنئِ را
ته پورته كيږي
۲ له بدفعلانو نه مِ خلاص كړه
او له خُونيانو سړو نه ماله نجات راكړه
۳ چه ګوره دوي څما دَ ځان دَپارَ په پسُونې
كښ ناست دِي
زورآور خلق مِ په ضد جمع شوي دِي
نه څما دَ ګناه او نه څما دَ خطا دَپارَ اي
يهوه
۴ بي څما له قُصوره هغوي زغلي او خانونه
طيّارَوِي
ته څما دَ مدد دَپارَ وِيښ شه او نظر وكړه
۵ ته اي يهوه دَ لښكرو الله دَ اسرائيل الله
دَ ټولو غير قومونو دَ ليدلو دَپارَ پورته
شه
او په هيڅ دَغاباز باندِ رحم مه كوه (سلاه
۶ هغه نماښام پسته ځي او دَ سپِي په شان
غاپي

او په ښهر ګرد ګرد ګرزي
۷ ګوره چه په خولو اړوي کوي
او په شونډو کښ ئي توري دي
او وائي چه څوک به ئي واوري
۸ مګر اي يهوه ته به په دوي پوري وخاندي
او ټول غير قومونه به مسخرې کړې
۹ اي زما قوته به تا صبر کوم
ځکه چه الله زما اوچت برج دي
۱۰ زما رحيم الله به زما مخ کښ ځي
الله به په هغوي چه زما په پسوني کښ
کښيني خپله خوښي به رابښکاره کړي
۱۱ هغوي مه وژنه هسي نه چه قوم زما هير کړي
مګر په قدرت سره ئي پراګنده کړه -
او هغوي لاندې وغورزوه
اي خداونده ته زمونږ ډال يي
۱۲ د هغوي د خولي د پاره او د هغو د شونډو د خبرو د پاره
هغوي دې په خپلي مغروري کښ ونيولي شي
د لعنت او د دروغو چه ئي وائي
۱۳ فنا کړه په غضب کښ ئي فنا کړه چه بيا نوي
او دوي دې وپوهيږي چه الله په يعقوب کښ بادشاهي کوي
د زمکي ترحد پوري (سلاه
۱۴ نماښام دې وګرزي - او د سپي په شان دې غاپي
او په ښهر دې ګرد ګرد ګرزي
۱۵ هغه به د خوراک د پاره وګرزي
او که ماړه نه شول نو ټوله شپه به تيره کړي
۱۶ زه به ستا د قدرت ثنا ووايم
هو صبا به زه ستا د مهربانئ مدحه وکړم
ځکه چه مر اوچت برج شوي يي
او پناه زما د تنګسيا په ورځ کښ
۱۷ اي زما قوته زه به ستا مدح وغږوم
الله زما اوچت برج دي زما د مهربانئ الله

## شپيتم

سردار د سرود کوونکي د پاره - د شوشن عدوت پوزن مختام - د داؤد - د ښوولو د پاره - په هغه وقت چه له ارام نهرايم سره او له ارام صوبه سره جنګيده نو چه يوآب وګرزيده او د مالګي په دره کښ ئي دولس زره ادومي سړي قتل کړل

۱ اي الله تا مونږ وغورزولو - او مات دې کړو
ته په قهر شولي - بيا مونږ په ځاي کړه
۲ تا زمکه ولړزوله - او سورې سورې دې کړه
ته ئي سورې جوړ کړه - ځکه چه هغه ريږي
۳ تا خپلو خلقو ته سختي ښکاره کړه

پـه موږ دِ دَ حیرانۍ شراب وڅښول
٤ تا هغو له چه له تا نه ویرېږي نښه ورکړله
چه ښکاره کړې شي دَ رښتیني له سببَ (سلاه
٥ چه محبوب ستا خلاص شي
په خپل ښي لاس سره نجات راکړه او موږ
له ځواب راکړه
٦ الله به خپلي پاکۍ سره وفرمائیل زه به
خوشحال شم
او سِکَمْ به ووېشم-او خوړ دَ سُکُوتْ
به کچ کړم
٧ جِلْعَادْ ځما دي او مَنَسِّيْ ځما دي
اِفْرَائِیمْ هم ځما دَ سر قوت دي
یهُوداځما قانون کونکي
٨ مُوآبْ ځما دَ وینځلو لوښي دي
په آدُوْمْ به خپلي څپلۍ ور وغورزوم
اي فَلِسْطْ ځما له سبب ناري ووهه
٩ څوک به ما محکم ښهر ته راولي
او چا زه آدُوْمْ ته بوتلم
١٠ اي الله تا موږ غورځولي یوځه ؟
او ته اي الله ځموږ له لښکرو سره
بهر نه وزي
١١ ته دَ دُښمن په مخالف موږ له مدد راکړه
ځکه چه دَ انسان نجات عبث دي
١٢ موږ به دَ الله په مددګارۍ سره بهادري
وکړو

ځکه چه هم دي به ځموږ دُښمنان
پائمال کړي

## یوشپیتم

سردار دَ سرودګرو دپارَ- په رباب باندِ-
مزمور دَ داؤد
١ اي الله فریاد ځما واوره
او دُعا مِ ولغوږه
٢ چه ځما زړه ډوب شي نو دَ زمکي له سرحده
به زه تا ته فریاد وکړم
ته مِ هغه کټ ته چه له ما نه اوچت
دي بوزه
٣ ځکه چه ته ځما دپارَ پناه شوي یې
دَ دُښمنانو په مخ کښ مِ یو محکم برج یې
٤ زه مدام ستا په خیمه کښ اوسم
ستا دَ وزرو تر سورې لاندِ به پناه ونسم
(سلاه
٥ ځکه چه تا اي الله ځما نذر واورېده
ما ته دِ دَ خپل نُوم دَ ویریدونکیو میراث
راکه
٦ ته به دَ بادشاه ورځي زیاتي کړي
او کالونه دَ هغه به تر دومره پېړو پوري
وروليٍ
٧ هغه به دَ الله په حضور کښ تر ابده
پوري ووسي
ته مِهرباني او راستي مقرر کړه چه دَده

حفاظت کوي

۸ پس زه به ترابده ستا دَ نوم مدح وغږوم
چه ورځ په ورځ به خپل نذرونه
ادا کوم

## دوشپیتم

سردار دَ سرودکرو دَپاره - دَ یَدوتُن په وزن
مزمور دَ داؤد

۱ فقط په الله خما ځان چپ کیږي
له هغه نه خما نجات دي
۲ فقط هغه خما کټ او خما نجات دَي
هغه خما اوچت برج دي زه به سخت
لغزش ونه خورم
۳ تاسو به دَ یو سړي په خلاف څو مده
مخالف کیږئ
چه تاسو هغه ټول وژنئ
لکه کوږ دیوال او پرېوتونکي شپول
۴ فقط هغوي مصلحت سره کوي چه څرنګه
ئې له خپله شوکت وغورزوي
هغوي په دروغو سره خوشحال کیږي
په خولو سره برکت وائي - مګر په دننه
کښ ئې لعنت دَي (سلاه)
۵ اي خما ځان فقط په الله چپ کیږه
ځکه چه خما اُمید په ده دَي
۶ فقط هغه خما کټ او خما نجات دَي
هغه خما اوچت برج دَي زه به ونه ښوئیږم

۷ نجات او جلال خما له الله سره دي
خما دَ قوّت کټ او خما پناه په الله کښ
ده
۸ اي خلقو په ده باندِ مدام تکیه وکړئ
خپل زړه دَ ده دَ وړاندِ خالي کړئ
الله خمونږ دَپاره پناه دَي (سلاه)
۹ په رښتیا سره کمینه خلق باطل دي
او علیجاه خلق دروغژن دي
هغه به ټول په تله کښ سپک وخیژي
۱۰ په ظلم تکیه مه کوئ
او په لوټ فخر مه کوئ
او چه مال موزیات شي په هغه
پورې زړه مه تړئ
۱۱ الله یو وار وفرمائیل
ما دوه واره واوریدل
چه قوّت له الله نه دي
۱۲ او مهرباني هم له تا نه ده اې خداونده
ځکه چه هر سړي ته به دَ هغه دَ عمل
په شان بدله ورکړې

## درې شپیتم

مزمور دَ داؤد - په هغه وقت چه دَ یهوداَ - په
بیابان کښ وه

۱ اي الله ته خما الله يې - زه به په لوی
صحر تا ولټوم
۲ ځان خما ستا تږی دي - جسم خما ستا

مشتاق دي
په وچه او په تږي زمکه کښې چه هلته
کښې اوبه نه وي
٢ هم هسې مې په مقدس کښې وکتل
چه ستا قدرت او جلال ووينم
٣ ځکه چه رحمت ستا له ژونده غوره دې
شونډې ځما به ستا حمد ووائي
٤ هم هسې به ترڅو پورې چه ژوندې يم
تاته به مبارک وايم
ستا په نامه به لاسونه پورته کړم
٥ ځان ځما به هم هسې په مغز او په
وازدو موړ وي
او خوله ځما به د خوشحالۍ په شونډو ستا
حمد ووائي
٦ هر کله چه زه په خپل کټ باندې تا ياد
کړم
او په پهرونو د شپې کښې ستا غور کوم
٧ له دې سببه چه ته ځما مددګار
شوې يې
او ستا د وزرو تر سورې لاندې به
خوشحالي وکړم
٨ ځان ځما په تا پسې شوې دې
ستا ښې لاس ما سنبالوي
٩ مګر هغه کسان چه ځما د ځان د
هلاکولو طلبګار دي
د زمکې تل ته به لاړ شي
١٠ هغه به د تورې قوت ته وسپارلې شي
او د ګيدړو د پاره به بخره شي
١١ او بادشاه به په الله نه خوښ شي
هر څوک چه قسم په الله کوي هغه
به فخر وکړي
ليکن د دروغژنو خولې به بندې شي

## څلور شپېتم

سردار د سرو کړو د پاره - مزمور د داؤد

١ په خپل غم کښې مې آواز واوره اې الله
او د دښمن له خوفه مې ژوندې وساته
٢ د هغو شريرانو له مصلحته مې پټ کړه
او د هغو مفسدانو له مجلس نه
٣ چه خپلې ژبې ئې د تورو په شان تيرې کړې
او ترخې خبرې لکه د غشې په کوږت کوي
٤ دې د پاره چه په پټه سره کامل سړې
ووېلي
هغه ناګهاني غشې ولي او نه ويرېږي
٥ او په بدې خبرې سره خپل ځانونه
مضبوطوي
او د پټو داموو کېښودلو د پاره خبرې کوي
او وائي چه دوئ به څوک ووينې
٦ هغوې د بدو کارونو تلاش کوي - او وائي
چه مونږ ښه لټول وکړل
او د هر يوه فکر او زړه ژور دې

۷ مګر الله به ئي وولي
او په غشي سره به ناڅاپه ژوبل کړي شي
۸ او په خپله ژبه به تيندک وخوري
دَ هغه ژبه په خپله مخالف ده
هرڅوک چه ئي وِيني سرونه به ورته خوځوي
۹ او ټول سړي به وويريږي
او دَ الله کار به بيان کړي
او دَ ده کاربه په ښه شان سره وپيژني
۱۰ صادق به په يهوه کښ خوښ شي
او په ده به تکيه وکړي
او ټول راست دِلان به فخر وکړي

## پنځه شپيتم

سردارِ سرودګرو دَپاره مزمور - غزل دَ داؤد
۱ اي الله ستا دَپارَه په صيون کښ ثنا غلي ناسته ده
او تاته به نذر ادا کړي
۲ يا سامِعُ الدُّعاءِ
ټول بشر به تاته راشي
۳ په ما باندِ ګناهونه غالب شول
ځمونږ خطاکاريِ چه دِي ته به ئي کفاره ورکړي
۴ مبارک هغه دَي چه تا غوره کړي - او در نزدي دِ که
چه ستا په بارګاهونو کښ استوګنه کوِي
مونږ به ستا دَ کور له نيکيِ نه ماړه شُو
او ستا دَ مُقَدَّس هيکل
۵ ته مونږ له په صداقت کښ په ويره سره ځواب راکوي
اي ځمونږ دَ نجات الله
ته تکيه يي دَ سرحدونو دَ زمکي
او دَ هغو چه لري دِي په قعرِ درياب باندِ
۶ ته په خپل زور سره غرونه ودروي
ته چه په زور سره ملا تړي
۷ ته دَ دريابونو غرنبيدل دَ موجونو آواز قلاروي
او دَ خلقو زوږ
۸ هغه هم چه په سرحدونو باندِ اوسي
ستا له نښو نه ويريږي
ته دَ صبا او دَ بيګاه وتل خوښوي
۹ ته دَ زمکي حال ګوري او سيرابي ورکوي
ته ئي ډير غني کوي
دَ الله درياب له اوبو نه ډک دي
ته خلقو ته غنَم ورکوي هرکله چه ته زمکي تياري کړي
۱۰ دَ هغو کرونديِ ډيري اوبه کوي
کيلونه ئي هوارَوي
ته ئي په باران سره نرموي

او زرغونو ته بي برکت ورکوي
١١ ته په خپل لطف سره کال ته تاج
ورکوي
او ستا د لاري غوړ والي حاصليږي
١٢ د بيابان په څراګاه باندِ توئيږي
او غونډيِ په خوښيِ سره ملا تړلي دِي
١٣ څراګاهونه په ګلونو سره ملبس دِي
دري بي له غلونه پټي شوي دِي
او هغه له خوشحاليِ نه آوازونه کوي
بلکه غزل وايي

## شپږ شپيتم

سردار د سرودګو د پاره - غزل - مزمور

١ اي ټولي زمکي الله ته په خوښيِ سره
ناره وکړه
٢ د ده د نامه د جلال مدح وغږوئِ
او وصف د ده لوئ کړئِ
٣ الله ته ووايئِ چه ستا کارونه څومره
هيبتناک دِي
ستا د قدرت د لويئِ نه به ستا دښمنان
ستا تابعدار شي
٤ ټوله زمکه به تا ته سجده وکړي
او ستا مدح به وغږوي
او ستا د نامه مدح به وغږوي (سلاه
٥ راشئِ د الله کارونه وګورئِ
په بني آدمو باندِ په خپل کار کښ څنګه
هيبتناک دي
٦ ده درياب په وچه بدل که
شغوي له درياب نه پياده پوري وتل
او هلته کښ مونږ ټول له ده نه خوشحال
شولو
٧ دي په خپل قدرت سره ابدي سلطنت
کوِي
او سترګي بي په قومونو نظر کوِي
او باغيان دِ خپل ځانونه لوي نه کاندِ
(سلاه
٨ اي خلقو ځمونږ الله مبارک کړئِ
او د ده د حمد آواز واوروئِ
٩ چه ځان ځمونږ په ژوند کښ لرِي
او ځمونږ پښو ته لغزش نه ورکوِي
١٠ اي الله دي د پاره تا ځمونږ ازمايښت وکه
او کړه دِ کړو لکه چه سپين زر کړه کيږي
١١ تا مونږ په دام کښ راوستلو
تا ځمونږ په شا باندِ دروند پيټي ايښي
دي
١٢ او ځمونږ په سر باندِ دِ خلق سواره کړل
مونږ په اور په اوبو کښ تللي يو
ليکن تا دولتمند ځاي ته ورسول
١٣ زه به له سوځنکيو قربانيو سره ستا په
کور کښ داخل شم
خپل نذرونه به ادا کړم

۱۴ چه ځما شونډو ویلي دي
او ځما خولې ویلي دي چه زه په تنګسټیا
کښ وم
۱۵ زه به سیځونکي قربانۍ دَ څربو څناورو
حلالي کړم
دَ مړاڼو له خوشبوئۍ سره
سخوندر او سیرلۍ هم وکړم (سلاه
۱۶ اي ټولو ویریدونکیو دَ الله راشئ او
واورئ
چه زه به بیان کړم چه ده ځمونږ دَپارَ
څه څه کړي دي
۱۷ ما ده ته په خپلې خولې سره فریاد وکه
او دَده وصف ځما په ژبه وشه
۱۸ که زه په خپل زړه کښ بدکارۍ ته
مائل یم
نو خداوند به وانه وري
۱۹ لیکن الله په رښتیا سره اوریدلي دي
ځما دَ دُعا آواز ئې آوریدلي دَي
۲۰ الله دِ مبارک وي
چه ځما دُعا اوخپله مِهربانۍ ئې له
ما نه رد نه کړه

## اوو شپیتم

سردار دَ سرودګرو دَپارَ- په ربابونو باندِ- مزمُور- غزل

۱ الله دِ په مونږ فضل وکړي- او مونږ
ته دِ برکت راکړي
اوخپل مخ دِ په مونږ روښانه کړي (سلاه
۲ چه لار ستا په زمکه باندِ معلومه شي؛
نجات ستا په ټول غیر قومونو باندِ
۳ اي الله امتونه دِ ستا شکر وکړي،
ټول اُمتونه دِ ستا شکر وکړي
۴ قومونه دِ خوشحاله شي- اوخوښي دِ وکړي
ځکه چه ته به په راستۍ سره دَ
اُمتونو عدالت وکړي
او په زمکه کښ به قومونو ته هدایت
ووکړي (سلاه
۵ اي الله اُمتونه دِ ستا شکر وکړي
ټول اُمتونه دِ ستا شکر وکړي
۶ زمکي خپل حاصل پیدا کړي دَي
الله هو ځمونږ الله به مونږ له برکت راکړي
۷ الله به مونږ له برکت راکړي
او ټول سرحدونه دَ زمکي به وویریږي

## اته شپیتم

سردار دَ سرودګرو دَپارَ- مزمُور- دَ داوُد- غزل

۱ الله دِ پورته شي- دُښمنان دَده دِ تار
پیتار شي
هغه چه له ده سره کینه لري دَده له
حضُورَ دِ وتښتي
۲ لکه چه لوګي خوریږي- هم هسي هغوي
خواره کړه
او لکه چه موم دَ اور په مخ کښ ویلي کیږي؛

هسي دِ شریران دَ الله له مخي نه نابودَ شي
۳ مگر صادقان دِ خوشحال شي هغوي دِ دَ الله
په مخ کښ خوښي وکړي
هو له خوښئ نه دِ خوشحال شي
۴ دَ الله ثنا وغږوئ-دَده دَ نامه مدح
وغږوئ
دَ هغه دَپارَ لار اوچتَ کړئ چه په بیابان
کښ سور دَي
نوم دَده یاه دي-او په حضور دَده خوښي
کوئ
۵ دَ یتیمانو پلار اودَکنډو وکیل
الله دَي په خپل مُقَدَّس مکان کښ
۶ الله تنها له په ټبر کښ کښینوي
او قیدیان په بختورئ کښ راولي
لیکن باغیان به په وچه زمکه اوسي
۷ اي الله هغه وقت چه ته دَخپل اُمّت
مخي له ورتلي
چه له بیابانه تیریدي (سلاه
۸ زمکه ولړزیدله
او آسمانونه دَ الله له حضورَ وڅڅیدل
هودا سینا هم دَ الله په حضور چه
دَ اسرائیل الله دَي
۹ اي الله تا په شیبو باران وورَاوه
تا خپل ستومانه شوي میراث قایم که
۱۰ ستا مخلوق په هغه کښ اوسیدل

اي الله تا په خپلي ښیگړي سره دَ مسکینانو
دَپارَ تیار که
۱۱ خداوند حکم ورکوي
دَ زیري کونکیو ښځو لوي ټولي دَي
۱۲ دَ لښکرو بادشاهان تښتي تښتي
او هغه چه په کور کښ ناسته ده لوټ ویشي
۱۳ تاسو ولي په شپلو کښ څملئ
لکه چه دَکوترې دَوزرو په شان چه په سپینو زرو
سره پټ شوي وِي
او ښڅي ئې په سرو زرو سره
۱۴ چه قادر مطلق په کښ بادشاهان تار
په تار کړل
نو دَ صَلمُون په غره کښ دَ واوري وریدلو
په شان
۱۵ دَ الله غر دَ باشان غر دي
اوچت غر دَ باشان غر دي
۱۶ اي لویو غرونو تاسي ولي په حسد
سره ځار کوئ
په هغه غر چه الله دَخپل سُکونت
دَپارَ غوره کړي دَي
هو یهوه به ترابده پوري په کښ اوسي
۱۷ دَ الله گاډي شل زره بلکه پزرگونو
زرگونو دي
خداوند په هغوي کښ دَي-لکه چه
سینا په مُقَدَّس دي

۱۸ ته په لوړه وختلې - تید دِ قید که
تا په خلقو کښې بخشيشونه واخستل
هو په شريرانو کښې ياه الله په هغو
کښې اوسيږي
۱۹ هو الله چه څمونږ نجات دی (سلاه
خداوند دِ مبارک وِي - چه هره ورځ
څمونږ بندونه پورته کوي
۲۰ څمونږ الله خلاصونکي الله دي
او دَ مرګ انجام دَ يَهْوَهْ خداوند په لاس دَي
۲۱ بلکه الله به دَ خپلو دښمنانو سرووهي
دَ هغه سړي سرږ وره ګکري چه په ګناهونو
کښې ځي
۲۲ يهوه و فرمايل چه زه به ئي له باشانه
بيرته راولم
مونږه به هغوي دَ درياب له ژوري
نه بيرته راولم
۲۳ تا چه پښي خپلي په وِينو دوبي کړي
ستا دَ سپيو ژبي هم ستا له دښمنانو
حصه ومومي
۲۴ اي الله هغوي ستا تلل وليدل
هو څما دَ الله څما دَ بادشاه تلل په
مقدِس کښې
۲۵ سرود وهونکي وړاندِ تلل او سازوهونکي
وروستو
پيغلي په منځ کښې چه طنبلونه ني وهل

۲۶ تاسو په مجامعو کښې الله مبارک کړئ
هو يَهْوَهْ ته تاسوچه دَ اسرائيل چينه يئ
۲۷ وروکي بن يمين دَ هغو حاکم دي
دَ يَهُودَا سرداران او دَ هغه ټولي
دَ زبلون سرداران دَ نفتالي سرداران
۲۸ ستا الله ستا دَ قوّت حکم وکه
اي الله هغه کار چه تا څمونږ دَ پاره
وکه قوي ئي کړه
۲۹ ستا دَ هيکل له سببَ چه په اورشليم
کښې دي
بادشاهان به ستا حِضور ته پيشکشي
راوړي
۳۰ ته دَ لوخو وحشي ځناور و ترټه
دَ غوايانو ګوهاري سره دَ سخو دَ ټوليو
هر يو به سپينو زرو سره پيشکشي ورکوي
هغه قومونه چه په جنګ خوشحاله
کيږي تار په تار ني کړه
۳۱ اميران به له مصر نه ووځي
کوش به زر خپل لاسونه الله ته پورته
کړي
۳۲ اي بادشاهتو دَ زمکي الله ته سرود
وغږوئ
خداوند ته مدح وغږوئ (سلاه
۳۳ هغه ته چه له ازلّ په فلک الافلاک
سپور دي

كوريِ هغه خپل آواز هولوئ آواز اوروي
۳۴ تاسو دَ قوّت نسبت الله ته وكړئ
دَده جلال په اسرائيل باندِ دي
او دَده قوّت په اوريځو كښ دي
۳۵ اي الله ته په خپل مُقَدّس مكانونو
كښ هيبتناك يي
دَ اسرائيل الله هغه دي چه زور او
قدرت خلقو ته بخښي
الله مبارك دَي

## نه شپيتم

سردار دَ سرود كرو دَپارَ - دَ شوشنيم - په وزن
باندِ مزمُور دَ داوُد

۱ اي الله ته نجات راكړه
ځكه چه اوبه مِرتر ځانَ پورِي
راغلي دِي
۲ زه په ژوري ختيي كښ ډوبيږم چه هلته
ودريده نشته
په ژورو اوبو كښ راغلي يم چه په
طُوفان كښ ئي غرق شوم
۳ زه په فريادكولو سره ستړي شوم ستونيِ
مِ وچ شه
دَ خپل الله په انتظاركولو سره په سترګو
مِ دُهوند راغي
۴ هغوي چه بي سببَ كينه راسره كوِي ځما
دَ سر له ويښتو نه زيات دِي
او هغوي چه ځما هلاكت غواړي او په
ناحقه ځما دشمنان دِي زورآور دِي
او هغه څه چه مِ آخستي نه وُو بيرته
مِ وركړل
۵ اي الله ته خو ځما په ناداني خبر يي
او ځما تقصيرونه له تا نه پټ نه دِي
۶ اي يهوه ربُّ الاَفواجه هغه چه ستا
منتظر دِي ځما په سبب دِ شرمنده
نه شي
اي دَ اسرائيل الله هغه چه ستا
طلب كوِي ځما په سبب دِ شرمنده
نه شي
۷ ځكه چه زه ستا دَپارَ ملامت كړي
شوي يم
او شرمندګيِ مِ مخ پټ كړي دي
۸ زه له خپلو ورونړو نه بيګانه شولم
او دَ خپلي مور له ځامنو نه يردَي
۹ ځكه چه زه ستا دَ كور غيرت خوړلي يم
او دَ هغو ملامتيِ چه تا ملامتوي په
ما پريوتلي
۱۰ هركله چه ما وژړل او ځان مِ روژتي وه
نو دا هم ځما دَ ملامتيا باعث شه
۱۱ هركله چه ما دَ ټَريُ جامي جوړي كړي
نو زه هغوته يو متل جوړ شوم
۱۲ هغه چه په دروازه كښ كښيني خبري

راپوري کوي
اوزه دَ نشه کونکو غزل يم
۱۳ ليکن زه تاته دُعا کوم اي يَهوَهْ دَ
قبليدلو په وقت کښ
اي الله ستادَ مِهرباني په لويِي سره
دَ خپل نجات په رښتيني سره ما له
ځواب راکړه
۱۴ له خټو مِ راوباسه چه ډوب نه شم
زه له هغو نه چه کينه راسره کوي -
اودَ ژورو اوبونه دِ بچ کړي شم
۱۵ دَ سيلاب اوبه مِ دِ و نه رغړوي
ژوره مِ دِ ونه نغړي
اوکوهي دِ خپله خوله راباندِ بنده نه کړي
۱۶ اي يهوه ما له ځواب راکړه ځکه چه
مهرباني ستا ښه ده
دَ خپلو ډيرو رحمتونو په موافق ځما په
لوري متوجّه شه
۱۷ او له خپل بنده نه خپل مخ مه پټوه
ځکه چه زه په تنکسيا کښ يم په جلديِ سره
ما له ځواب راکړه
۱۸ ځان ته مِ رانژدي شه - او شُفعَ ئي
ورکړه
ځما له دښمنانو له سببَ مِ فديه ورکړه
۱۹ ته ځما په ملامتيا اوځما په رسوائي
اوځما په بي عزتي خبر يي
ځما ټول دښمنان ستا په حضور کښ دي
۲۰ ملامتيا مِ زړه وچاوه - او په بيمارئ
کښ گرفتار يم
ما وکوت چه څوک مِ همدردي وکړي
هيڅوک نه وه
او دَ تسلي ورکولو دَيارَ ليکن بيا مِ
نه مونده
۲۱ هغوي دَ خوراک دَپارَ ترخه راکړل
او تنده کښ ئي سرکه راباندِ وڅښوله
۲۲ دسترخوان دِ دَ هغو دَ وراندِ دام شي
او چه هغوي سلامتيا کښ دي نو دام دِ ئي شي
۲۳ دَ هغو سترګي دِ رندي شي چه نه ويني
او ملا دَ هغو دِ مدام په لړزه وي
۲۴ په دوي باندِ خپل غضب رانازل کړه
او ستا سخت قهر دِ هغوي لاندِ کړي
۲۵ دَ هغوي محلونه دِ ويجاړ شي
دَ هغو په خيمو کښ دِ هيڅوک ونه اوسي
۲۶ ځکه چه هغوي ستا وهلي آزاروي
ستا دَ ژوبلو غم په خبرو زياتوي
۲۷ دَ هغوي گناهونه په گناهونو باندِ زيات
کړه
او ستا په صداقت کښ دِ داخل نه شي
۲۸ او دَ ژوند له کتاب دِ محوه شي
او په صادقانو کښ دِ ونه ليکلي شي
۲۹ ليکن زه خو مِسکين او غمګين يم

ای الله ستا نجات دِ ما سرفراز کړي
۳۰ زه به دَ الله نوم په مدح سره وغږوم
او په شکرګذارۍ سره به ئې تعریف وکړم
۳۱ دا به له غوایه نه په نزد دَ یَهُوَهَ غوره کړي
یا له سخوندر نه چه ښکر اوسُم لري
۳۲ عاجزانو لیدلي دي او خوشحالَ دي
او ای دَ الله طالبانو ستاسو زړونه دِ ژوندي شي
۳۳ ځکه چه یهوه دَ مسکینانو اوري
او دَ خپلو قیدیانو بي عزّتي نه کوي
۳۴ آسمانونه او زمکي دِ دَده حمد ووايي
دریابونه هم او هریو ژوندي شَي چه په هغو کښ دَي
۳۵ الله به صیون خلاص کړي او دَ یَهُودَا ښهرونه به جوړ کړي
او هغه به په کښ اوسي. او وارث به ئې کړي
۳۶ او دَ دوی دَ غلامانو اولاد به هم دَ هغه وارث کړي
او هغه چه دَده په نوم مینه کوي هغه به په کښ اوسي

## اویا ام

سردار دَ سرودګرو دَپارَه. مزمُور. دَ داؤد دَ ذکر کولو دَپارَه

۱ ای الله ځما دَ خلاصولو دَپارَه جلتي وکړه
ای یهوه په مددګارۍ ځما جلتي وکړه
۲ هغوي دِ خجل او شرمنده شي
چه ځما ځان لټوي
هغوي دِ بیرته وګرزولي شي او بيعزّت دِ شي
چه ځما په نقصان خوشحالیږي
۳ او هغوي دِ بیرته کړي شي دَ هغوي دَ شرمندګۍ له سببَ
چه هاها وايي
۴ هغه ټول چه ستا طالبان دي په تا کښ دِ خوښ او خورم وي
او هغه چه ستا دَ نجات مشتاق دي مدام دِ وايي
چه الله دِ لوي کړي شي
۵ زه مسکین او محتاج یم
ای الله ځما دَپارَ بیړه وکړه
ځما مددګار او پناه ته ئې
ای یهوه ته ډیل مه کوه

## یو اویا ام

۱ ای یهوه زه په تا توکل کوم
شرمنده دِ هیڅري نه شم
۲ په خپل صداقت سره م خلاص کړه او بچ م کړه
ته خپل غوږ ځما په طرف ټیټ کړه-

او نجات راکړه .
۳ ځما د اسنوګني دپاره يو محکم کټ شه -
چه زه مدام هلته ورځم
تا م د نجات حکم کړي دي
ځکه چه ته ځما کټ او ځما قلا يې
۴ اي ځما الله ته مې د شرير له لاس بچ کړه
او د بد او د ظالم له لاس
۵ ځکه چه ته ځما اميد يې اي خداوند يَهُوَهْ
ته ځما تکيه يې له هلکتوب نه
۶ او له رَحِمَ په تا سبال شوي يم
او ته هغه يې چه زه دِ د مور له نَس
راويستلم
مدام به ستا مدحه کوم
۷ زه د ډيرو په نظر کښ تعجب يم
مګر ته ځما مضبوط پناه ګاه يې
۸ ځما خوله به ستا له مدحي ډکه شي
او ستا له جلال ټوله ورځ
۹ ته مې د زوړوالي په وقت کښ مه غورزوه
چه ځما قوّت پرې کمېږي مه مې پرېږده
۱۰ ځکه چه دښمنان ځما په باب کښ خبرې
کوي
او هغه چه ځما د ځان په ځارلو
کښ دي مصلحت سره کوي
۱۱ وايي چه دي الله پرېښي دي
ورپسي شئ او يې نسئ - ځکه چه هيڅوک

يې خلاصونکي نشته
۱۲ اي الله له ما نه مه لرې کېږه
اي الله ځما د کومک دپاره بيړه وکړه
۱۳ هغه چه ځما د ځان دښمنان دي
شرمنده او فنا دِ شي
او هغه چه ځما ضرر غواړي په رسوايۍ
او په شرمندګۍ دِ پټ شي
۱۴ زه به مدام اميدوار يم
او ستا مدحه به ډيره ډيره کوم
۱۵ خوله ځما به ستا صداقت بيانوي
ستا نجات ټوله ورځ
ځکه چه د دغو په حساب نه پوهيږم
۱۶ زه به د خداوند الله په قدرت کښ
داخل شم
ستا هو خاص ستا د صداقت ذکر به کوم
۱۷ اي الله له هلکتوب دِ ځما تربيت وکه
او لا تر اوس پورې زه ستا عجائبات
بيانوم
۱۸ اي الله چه زه زوړ يم - او ويښته مې
سپين دي - مه مې پرېږده
تاچه ستا قوّت بلې پيړۍ ته ظاهر کړم
قدرت ستا هر يو ته چه راتلونکي
دي
۱۹ اي الله ستا صداقت هم ډېر اوچت دي
چه تا لوي کارونه کړي دي

اي الله ستا په شان څوک دي ؟
۲۰ تاچه موږته ډیر او سخت افتونه ښولي
دِي
ته مو بیا ژوندي کړي
او دَ زمکي له ژوري نه به مو بیا راپورته
کړي
۲۱ لويي څما زیاته کړه
او بیا را وګرزه - او ما له تسلي راکړه
۲۲ زه به په بِین باندِ ستا مدحه وکړم
هو ستا راستي به اي څما الله
تا له په بربط باندِ مدحه وغږوم
اي دَ اسرائیل قدّوسه
۲۳ چه زه ستا مدحَ غږوم - نو څما شونډي
به له ښادئ ناري وکړي
او ځان م هم چه تا ئي فدیه ورکړي ده
۲۴ ژبه څما به ټوله ورځ ستا دَ صداقت
خبري کوي
ځکه چه هرڅوک چه څما دَ ضرر غوښتونکي
دِي رسوا بلکه شرمنده شوي دِي

## دواویا ام

مزمور دَ سلیمان

اي الله ته خپل عدالتونه بادشاه ته
ورکړه
او صداقت خپل دَ بادشاه ځوي ته
۲ هغه به ستا دَ خلقو په صدق سره
انصاف وکړي
او ستا په عاجزانو به عدالت
۳ غرونه به دَ خلقو دَ پارَ سلامتیا راوړي
او غونډئ په صداقت کښ
۴ هغه به دَ خلقو دَ مسکینانو
انصاف کوي
دَ محتاجانو ځامنو له به نجات
ورکړي
او ظالمان به ټکړي ټکړي کړي
۵ تر هغه پوري چه نمر باقي وي له تانه
به وویریږي
او څو چه سپوږمئ وي په ټولو پیړو کښ
۶ هغه به داسي راکوزیږي - لکه باران
په لَو کړي شوي زمکه باندِ
لکه بارانونه چه په زمکه باندِ وریږي
۷ دَ ده په زمانه کښ به صادقان ترو
تازه وي
او تر هغه پوري چه سپوږمئ باقي وي
ډیري سلامتئ به وي
۸ له دریاب تر دریاب پوري به دَ ده حکومت
جاري وي
او له دریاب تر سرحده دَ زمکي پوري
۹ هغوي چه په بیابان کښ اوسي دَ ده
دَ وړاندِ به ټیټ شي
او دُښمنان به ئي خاوري ښکل کړي

۱۰ دَ ترسیس او دَ جزیرو بادشاهان به
بیشکشئ ورته راوړي
دَ شَبَا او دَ سَبَا بادشاهان به نذراني
ادا کړي
۱۱ هو ټول بادشاهان به ده ته سجده
وکړي
ټول غیر قومونه به دَده خدمت وکړي
۱۲ ځکه چه دي به محتاج چه فریاد کوي
خلاص کړي
او هغه غریب چه مددګار ئي نه وي
۱۳ په غریب او محتاج به رحم وکړي
او دَ خوارانو ځانونو له به نجات ورکړي
۱۴ دَي به دَ هغو ځانونه شُفعَ کړي له فریبه
او له ظلمَ
او دَ هغوي خون به دَده په نظر کښې
قیمت بها وي
۱۵ دَي به ژوندي اوسي-او سره زر دَ
سَبَا به ده ته ورکړي شي
سړي به دَده په حق کښې مدام دُعا کوي
ټوله ورځ به ده ته مبارکي ورکوي
۱۶ زیاتي داني دَ غنمو به وشي په زمکه کښې
دَ غرونو په څوکو کښې
چه میوي دَ هغو به دَ لُبنَان په شان
زنګیږي
او دَ ښهر خلق به ئي دَ زمکي دَ واښو
په شان تر و تازه وي
۱۷ نوم دَده به ترابده پوري باقي وي
او دَ نمر په شان به ئي نوم مشهور
وي
خلق به په ده کښې مبارک شي
ټول غیر قومونه به ده ته مبارک
وائي
۱۸ یهوه الله دَ اسرائیل دِ مبارک شي
چه فقط عجائب کارونه کوي
۱۹ او دَ جلال نوم دَده دِ تر ابده
مبارک وي
او ټول جهان دِ دَ هغه په جلال
سره ډک شي ؛ آمین او آمین
۲۰ دُعا دَ داؤد بن یَسِّيُ تمام شوه

# دریم کتاب

## دري اويا ام

مزمور دَ آصف

۱ په تحقیق سره الله دَ اسرائیل دَپاره ښه دي
هو پاک زړونو له
۲ مګر زه چه وم پښې مې پرېوتلو ته نژدې دي
قدمونه مې ښوئېدلو ته
۳ ځکه چه ما له احمقانو سره کینه کوله
هغه وقت چه ما دَ شریرانو بخت ولید
۴ چه دَ هغو په مرګ کښې هیڅ سختئ نشته
مګر قوّت دَ هغوي محکم دي
۵ او دَ نورو سړو په شان دوي په آفت
کښې نه دي
او نه دَ نورو خلقو په شان په دوي
زحمت ورځي
۶ له دې سببَ مغروري دَ طوق په شان
دَ هغه په غاړه باندې
ظلم دَ جامې په شان پټ کړي دي
۷ سترګې ئې له وازدو نه وتلې دي
له هغه نه چه زړه ئې غواړي زیات
بیاموي
۸ دوي مسخري کوي او په شرارت سره دَ
ظلم خبري کوي
ویل په مغرورئ سره کوي
۹ خولې ئې دَ آسمان دَ الله په لوري وازي
کړي دي
او ژبې ئې په زمکه کښې ګرزي
۱۰ دې دَپارَ دَ هغه خلق راګرزي
دَ اوبو ډکه کاسه دوی خالي
کوي
۱۱ او وایې چه الله څنګه پوهیږي
او حق تعالیٰ علم لري څه ؟
۱۲ ګوره دا شریران دي
چه مدام په آرام کښې شوي دولت ئې
زیاتیږي
۱۳ په یقین سره ما خپل زړه عبث صاف
کړي دَي
او لاسونه مې په پاکئ سره ووینځل
۱۴ او ټوله ورځ په سختئ کښې شوم
او هر صبا عذابیږم
۱۵ او که چرې زه ووایم چه زه به داسې
بیان وکړم
نو به ستا دَ اولاد له ټولي سره بیوفائي
وکړم
۱۶ چه ما دا فکر وکه چه ئې څرنګه معلوم
کړم
نو زه دردمند شوم

۱۷ او تر هغه پوري چه زه دَ الله په مُقدسّ
کښ داخل شوم
دَ هغو په انجام پوه شوي نه وم
۱۸ په يقين سره ته هغوي دَ ښوئيدلو په
ځايونو کښ ودروي
او هلاکت ته يې ورغورزوي
۱۹ په يو دم سره څنګه ويران شول
او هغوي په آفتونو سره فُوفنا شول
۲۰ لکه له خوبَ چه څوک وِيښ شي
هم هسي ته به اي خداوندَ چه ته وِيښ
کيږي ته به دَ هغو دَ صورتَ نفرت وکړي
۲۱ څکه چه څما زړه خپه شه
او په خپلو پښتورګو کښ سوري شوم
۲۲ يو داسي حيوان وم او جاهل
چه ستا په حضُور کښ دِنګر وم
۲۳ نو هم زه مدام له تا سره يم
تا له ښي لاسَ ونيولم
۲۴ او ته به مِ په خپل مصلحت سره هدايت
ولږي
او اخر جلال ته به ما قبول کړي
۲۵ په آسمان باندِ مِ بي له تا هيڅوک نشته
او په زمکه کښ سِوا له تا دَ هيڅا مشتاق
نه يم
۲۶ بدن او زړه څما کمزوري کيږي
ليکن الله څما دَ زړهِ قوت او ترابده
پوري څما بحره دَي
۲۷ ګوره هغه چه له تا لري دي فنا به شي
او تا هغه ټول چه له تا نه زنا
پسي ځي هلاک کړي دِدي
۲۸ څما دَپارَ ښه دِي چه الله ته نږدي شم
ما يهوه الله خپل پناه جوړ کړ
چه زه ټول کارونه ستا بيان کړم

## څلوراويام

سَنکِيل دَ آصف

۱ اي الله موږ دِ ولي ترابده پوري ترک
کړي يُو
ستا دَ څراګاه په رمو باندِ څله ستا
دَ قهر لوګَي کيږي
۲ خپل جماعت ياد کړه چه تا دَ قديمه
پيرودلَي دَي
تا شُفعَ ورکړي دَه چه دَ خپل ميراث
فرقه يې کړي
او صيحون غر چه ته په کښ اوسيدي
۳ قدمونه واخله ترابدي کنډرو پوري
ټولي بديِ چه دُښمن په مَقدِس
کښ کړي دِي
۴ ستا دُښمنانو ستا په جماعت کښ غوغا
وکړه
خپلي نښه يي دَ نښان دَپارَ ودرولِي دِي
۵ او داسي معلومَ شوه لکه سړي چه

پورته کړي دي
تبر دَ ونو په بڼو باندِ
۶ او اوس به ټول نقش کړي شوي کاردَ
هغه په يو وار
په تبرُونو او په څټکونو ماتوي
۷ هغوي ستا مقدِس په اور وسيځه
او ستا دَ نوم دَ اوسيدلو ځاي ئي په
زمکه ونړاوه پليت ئي کړ
۸ هغو په خپلو زړونو کښ وويل چه
راشئ چه ټول سره خراب کړو
ټول جماعتونه دَ الله ئي په زمکه کښ
سيځلي دي
۹ مونږ خپلي نښي نه وينو
نبي هم پاتي نشته
او په مونږ کښ څوک نشته چه وپوهيږي
چه تر کومه پوري به وي
۱۰ اي الله دُښمن به تر کومه پوري رسوائي
کوي
تر ابده پوري به دُښمن ستا په نامه
کفر وائي څه ؟
۱۱ ته ولي خپل لاس هو خپل ښي لاس
بيرته راکاږي ؟
له خپلي غيږي ئي راوباسه او فنا ئي
کړه
۱۲ خو هم الله له قديمه ځما بادشاه دَي
چه دَ زمکي په منځ کښ دَ نجات کار کوي
۱۳ تا په خپل قدرت سره درياب وڅيره
او دَ نهنګانو ککرئ دِ په اوبو کښ ملتي
کړي
۱۴ دَ لِويَټانو سرونه دِ ټکړي ټکړي کړل
تا دَ خوړلو دَپارَ ورکړل هغه قوم له چه
بيابان کښ اوسي
۱۵ او چيني او سيلابونه دِ څيري کړل
جاري دريابونه دِ وچ کړل
۱۶ ورځ ستا ده او شپه هم ستا ده
نُور او نمَر تا جوړ کړي دي
۱۷ ټول حدونه دَ زمکي دِ مقرر کړل
وړَي او ژمَي تا جوړ کړي دي
۱۸ اي يهوه دا يادکړه چه دُښمن رسوائي
کړي ده
او احمق قوم ستا په نوم کفر ويلَي دي
۱۹ ته دَ خپلي قمرئ ځان ښکلي ښناور ته
مه سپاره
دَ خپلو عاجزانو ژوندون تر ابده پوري
مه هيروه
۲۰ وعدي ته نظر وکړه
ځکه چه تياره ځايونه دَ زمکي دَ ظلم
دَ استوګني نه ډک دي
۲۱ مظلوم دِ شرمنده نه ګرزي
عاجزان او محتاجان دِ ستا دَ نامه مدحه

وکړي

۲۲ پورته شه اي الله خپله مقدمه وکړه
ياد کړه چه احمق تا لره ټوله ورځ رسوائي
کوي

۲۳ دَ خپلو دُښمنانو آواز مه هيرَوه
دَ فتنې پورته کوليو غوغا چه مدام په تا
پورته کيږي

## پنځه اويام

سردار د سرود کرو دَپاره - دَ اَلتَشْحِيت په
وزن مزمُور دَ آصف - غزل

۱ اي الله مونږ ستا شکر کوو
مونږ شکر کوو ځکه چه ستا نُوم نزدې
دَي
سرې ټول عجائبات ستا هم هسې بيانوِي

۲ او هر کله چه زه وقت مقرّر کړم
نو په راستئ سره به عدالت کوم

۳ زمکه او ټول اوسيدونکي ئې ويلي شول
ما دَ هغو ستني ودرولې دِي (سلاه

۴ ما کبرجنو ته وويل چه کبر مه کوئِ
او شريرانو ته چه ښکر مه پورته کوئِ

۵ خپل ښکر مه پورته کوئِ
په کړدن کشئ سره خبري مه کوئِ

٦ ځکه چه نه له نمرخاته نه له نمرپريواته
نه
او نه له سُهَيله سرفرازي راخيژي

۷ بلکه الله منصف دَي
يو کوزوي او بل هسکوِي

۸ ځکه چه دَ يهوه په لاس کښې کاسه دَه
او شراب ئې خميره کيږي
له نشي نه ډکه دَه او له دې نه ئې ور
تويوي
ليکن ټول شريران دَ زمکې به دَ هغې
خيرې ښځوړ کړي اوو به ئې ښبي

۹ مګر زه به ئې تر ابده پورې بيان کړم
او دَ يعقوب دَ الله مدحه به وغږوم

۱۰ ټول ښکرونه دَ شريرانو به مات کړم
او دَ صادقانو ښکرونه به پورته کړي شي

## شپږ اويام

سردار دَ سرود کرو دَپاره - په ربابونو باندې -
مزمُور دَ آصف - غزل

۱ الله په يَهُودَا کښې مشهور دَي
نوم ئې په اسرائيل کښې بزرګ دَي

۲ او خيمه ئې په شالم کښې دَي
او استوګنه ئې په صيحون کښې دَه

۳ ده هلته غشي دَ ليندو مات کړل
ډال او توره او جنګ (سلاه

۴ ته حَسِين او ذُوالجلال يې دَ ښکار
له غرونو نه

۵ دلاور لُوټ شوِي دِي هغوي وودهٔ
شول

او ټولو ټوټناکو سړيو خپل لاسونه نه
موندل
٦ اي دَيعقوب الله ستا په ترټلو بانډِ
کاډِي او سور دَ غفلت په خوب کښ
واچولَي شول
٧ ته خاص ته دهشتناک يي
څوک ستا په حِضُور کښ ودريدلي شي
چه ته خپه يئ
٨ تا له آسمانه حکم واوراوه
او زمکه وويريده اوچپ شوله
٩ چه الله عدالت له پورته شه
دَ بچات وركولو دَپارَ دَ زمکي غريبانوته (سلاه)
١٠ څکه چه غُصَّه دَانسان به ستا تعريف
وکړي
او باقِي غضبونه به ته منعه کړي
١١ قسم وکړِه او پُوره خپل الله ته يُ
اداکړه
ټول چه دَده گيرچاپيره دِي هغه له
چه هيبت ناک دَي پيشکښئِ دِ راوړِي
١٢ دَي به دَ اميرانو روح پريکړي
او دَ زمکي بادشاهانو ته هيبت ناک دَي

## اوو اويام

سردار دَ سرودکرو دَپارَ - دَيدُوتُن په وزن-
مزمور- دَ آصف
١ زه به الله ته په خپل آواز سره ناره وکړم
هو په خپل آواز سره الله ته او هغه
به غوږ راته ونيسي
٢ زه دَ تنگدستئِ په ورځ کښ به خداوند
لټوم
لاس مِ به شپه کښ ور وغزول او
سست نه شول
ځان مِ له تسلئِ موندلو نه انکاروکه
٣ الله يـاد وم او بي آرامَ يم
زه ناري کوم او روح مِ غمناک دي (سلاه)
٤ ته ځما سترگي بيداري لري
زه داسي حيران يم چه خبري کولي
نه شِم
٥ ما دَ پخوانيو ورځو فکرونه
دَ وړاندِئِ زماني کالونه
٦ غزل خپل په شپه کښ يادوم
په خپل زړه کښ فکر کوم- اوروح مِ
ډير تلاش وکه
٧ چه خداوند به مِ ترابده پوري ترک
لري څه ؟
بيـا به هيچري را نه راضِي نه شيِ څه؟
٨ مِهـربانِي دَده ترابده ورکه شوله
څه ؟
دَده وعدي ترابده پوري تمامِيږي
څه ؟
٩ الله خپل فضل هير کړ څه ؟

هغه خپل رحمتونه په قهر بند کړل څه؟
(سلاه
۱۰ ما ووې داځما ناتواني
دا تغیر دَ الله تعالیٰ دَ ښي لاس دَي
۱۱ زه به دَ یهوه کارونه بیان کړم
ځکه چه زه به ستا قدیمي عجائبات
یاد کړم
۱۲ زه به ستا دَ هر کار تذکره وکړم
او ستا په کارونو به فکر وکړم
۱۳ اي الله ستا لار په مقدس کښ ده
کوم الله. لوي دي لکه چه الله
۱۴ ته هو ته هغه الله يي چه عجائب
کارونه کوي
دَ قومونو په مینځ کښ دِ خپل زور
ظاهر کړ
۱۵ تا په خپل بازو سره خپل قوم شفع کړ
دَ یعقوب او دَ یوسف ځامن (سلاه
۱۶ اي الله ته اوبو ولیدي
ته اوبو ولیدي وویریدلي- او ژوري
ولړزیدلي
۱۷ اوریځو اوبه توي کړلي
آسمانونه وغریدل
او له ځلورو طرفونه ستا غشي لاړل
۱۸ ستا دَ رعد آواز په بوړ بوړکي کښ وه
بریښنا دِ جهان رڼا که
زمکه ولړزیده او ورپیده؛
۱۹ ستا لار په دریاب کښ وه
او ستا تلل په ډیرو اوبو کښ
او ستا دَ قدمونو پل معلوم نه وه
۲۰ تا دَ خپل قوم دَ رمي په شان رهنمائي وکړه
دَ موسیٰ او دَ هارون له لاسَ

## اته اویام

مشکیل دَ آصف

۱ اي ځما امّت توریت ځما واوريِ
ځما دَ خولي خبرو ته غوږ کيږديِ
۲ زه به په یو متَل خوله پرانزم
دَ قدیمي رازخبري بیان کوم
۳ چه ما آوریدلي دي- او پیژاندلي دي
او ځمونږ پلرونو او نیکونو هم را ته بیان
کړي دي
۴ دَ دوي له اولادِ به ئي پټ نه کړو
بلکه راتلونکي پُښت ته به دَ یهوه مدحي
بیان کړو
او دَده قوّت او دَده عجائب کارونه چه
ده وکړل
۵ ځکه چه ده په یعقوب کښ یوه وعده
قائمه کړه
په اسرائیل کښ ئي توریت مقرّر کړ
چه ئي ځمونږ پلرونو ته وفرمائیل
چه دوي ئي خپلو ځامنو ته وښيي

٦ دي دَپارَ چه راتلونکي زمانه هو هغه
خامن چه پيدا تبي رده ني کړي
چـه پورته شي اوخپل اولاد ته ئې
بيان کړي
٧ تاچه هغوي په الله باندِ اميد وکړي
اودَالله کارونه هير نه کړي
بلکه دده حکمونه وساتي
٨ او دَ خپلو پلرونو په شان نه شي
ياغي او سرکښه پيړۍ
چه خپل زړونه ني تيار نه کړل
او د هغو روحونه الله سره ټينګ نه شول
٩ دَ افرائيمُ اولاد وسلي وتړلي او لِندي
ني واخستلي
دَ جنګ په ورځ پسته ونښتيدل
١٠ دَ الله وعدي ني ونه ساتلي
بلکه دَ ده دَ توريت نه تلو نه ني انکار
وکه
١١ او دَ ده کارونه ني هير کړل
او دَده عجائب کارونه چه په دوي ني
ظاهر کړل
١٢ دَدوي دَ پلرونو او دَ نيکونو په مخامخ
ني عجائب کارونه وکړل
دَ مصر په رمکه کښ دَ صُعَن په
ميدان کښ
١٣ ده درياب څيري که - او هغوي ني
پوري کړل
او اوبه ني دَ ديرِي په شان ودرولي
١٤ دَورځي په وقت ني په اوريځي سره لار
ښوولو
او ټوله شپه ني دَ اور په رڼا
١٥ په بيابان کښ ني ګټه وڅيرله
په دوي ني وڅښولي لکه دَ ژوري
١٦ له ګټ نه ني سيلاب را وويست
او دَ والو په شان ني اوبه وبهولي
١٧ هغوي خپله خطا په دي باندِ زياته کړه
دَ سرکښيِ کولو په سبب مخالف دَ حق تعالى
په بيابان کښ
١٨ او په خپلو زړونو کښ ني دَ الله ازمائښت
وکه
دَ دوديِ په غوښتلو دَ خپل نفس دَپارَ
١٩ هو هغوي دَ خپل الله په خلاف خبري
وکړي
و ني ويل چه الله په بيابان کښ دسترخوان
تيار ولي شي څه ؟
٢٠ ګوره ده ګټ داسي وواهه چه اوبه ور
نه را ووتلي
او ولي وبهيدلي
دي دوديِ هم راکولي شي څه ؟
او دَ خپل قوم دَپارَ به غوښي تياري کړي
څه ؟

۲۱ پس دا یهوه واوریدل - او یه قهر شه
او په یعقوب باندِ اور بل شه
او هم په اسرائیل ئې قهر پورته شه
۲۲ ځکه چه هغوي په الله یقین ونه که
او دَده په نجات ئې تکیه ونه کړه
۲۳ نو ده هم پورته اوریځې ته حکم وکه
او دروازې دَ آسمان ئې لرې کړې
۲۴ او په هغوي ئې مَن ووراوه چه و ئې خوري
او هغو ته ئې آسماني غله ورکړه
۲۵ سړو دَ زورآورو ډوډئ وخوړه
او دومره توښه ئې ورواستوله چه پرِ ماړه شول
۲۶ او له آسمانه ئې مشرقي باد راوالوزاوه
او په قوّت سره ئې جنوبي باد راوست
۲۷ او دَ خاورو په شان ئې غوښې وورولې
او دَ دریاب دَ شګو په شان ئې اَلوتونکي مَرغان
۲۸ او دَ هغوي دَ ډیرو په منځ کښِ ئې را وغورزول
دَ هغوي دَ استوګني په ځاي ئې ګیرچاپیر
۲۹ نو و ئې خوړل او ښه ماړه شول
او هغه شَي ئې وله ورکه چه پرِ باندِ مست شول
۳۰ دوي له خپلي مستي نه په ړه نه شول
لیکن هغه وقت چه خوراک ئې هم لا تر اوسه په خولو کښِ وه
۳۱ غضب دَ الله په هغو پورته شه
او ځتیان دَ هغوي ئې قتل کړل
او دَ اسرائیل ځوانان ئې ووهل
۳۲ او سره له دي ئې هم بیا زیاته خطا وکړه
او دَده په عجائبو قدرتونو ئې باور ونه کړ
۳۳ نو ده دَ هغو ورځې په عبثو سره تېرې کړې
او دَ هغوي کلونه ئې په پریشانئ
۳۴ چه دوي ئې قتل کول - نو پس له هغه ئې طلب وکه
او را وګرزیدل او وختي ئې دَ الله تلاش وکه
۳۵ او یاد ئې که چه الله دَ هغوي ګټ دَي
او حق تعالیٰ دَ هغوي شُفَع دَي
۳۶ لیکن په خولو سره ئې دَده خوشامند کوله
او په ژبو سره ئې ده ته دروغ ویل
۳۷ ځکه چه له ده سره ئې زړونه راست نه وُو
او دَ ده په وعده کښِ وفادار نه وُو
۳۸ مګر دَي رَحیم شوَي دَ هغو ګناهونه ئې

معاف کړل او هلاک ئې نه کړل
هو ده څو واره خپل قهر راوه ګرزاوه
او ټول غضب خپل ئې و نه خوځاوه
۳۹ ځکه چه ده یاد کړل چه دوي بشر دي
یو تلونکې باد دي چه بیا بیرته نه راځي
۴۰ دوي څو واره په بیابان کښ یاغي شول
او په صحرا کښ ئې په غضب که
۴۱ بلکه وګرزیدل او بیا ئې الله وآزمایه
او د اسرائیل قدّوس ئې غمګین که
۴۲ د ده لاس ئې یاد نه کړ
نه هغه ورځې چه دوي له ئې له دښمن فدیه ورکړه
۴۳ چه ده په مصر کښ څنګه خپله نخښه وډروله
او د صوعن په میدان ئې خپل عجائب کارونه
۴۴ چه د هغوي دریاب ئې په وینو بدل که
او د هغوي ولي چه ئې څښلې نه شوې
۴۵ او غوباړې ئې په هغو کښ ورواستولې چه هغه ئې وخوړل
او هم چندخې چه هغه ئې خراب کړل
۴۶ او د هغو حاصل ئې پښتیو ته ورکه
او د هغوي مشقّتونه ئې ملخ ته
۴۷ تاکونه ئې په ږلئ ووهل
او د انځیرو ونې ئې په چنبې
۴۸ او چارپایان د هغوئ ږلئ ته وسپارل
او رمې ئې تندر ته
۴۹ د خپل غضب سختنې ئې په هغو باندې واچوله
قهر او غصّه او عذاب
د بدئ د فرښتو ټولئ
۵۰ او د خپل قهر لار ئې جوړه کړه
د هغو ځان ئې له مرګ و نه ساته
بلکه د هغو ژوندون ئې وبا ته وسپاره
۵۱ او په مصر کښ ئې ټول ورنبي پیدا شوي هلاک کړل
او د هغو قوّت د حام په خیمو کښ
۵۲ مګر خپل قوم ئې د رمې په شان بوته
او هغوي ته ئې د کلي په شان په بیابان کښ لار وښودله
۵۳ او په امن سره ئې بوتلل څوچه و نه وبریدل
مګر دریاب د هغو دښمنان ډوب کړل
۵۴ او دوي ئې د خپل مقدّس په حد کښ راوستل
دي غره ته چه د ده ښي لاس حاصل کړې دي
۵۵ غیر قومونه ئې هم د دوي له مخه وشړل
او د هغو میراث ئې په رسد سره په جریب وویشه

او فرقې دَ بنِي اسرائيلو په خپلو خيمو کښې
و وسولې
٥٦ تا هم و ئې ازمايه او باغي شول له الله
حق تعالىٰ نه
او دَده شاهدَي ئې و نه ساتلې
٥٧ بلکه وګرزيدل او دَ خپلو پلرونو او نيکونو
په شان ئې بې وفائي وکړه
او دَ کږې لِيندې په شان ښنګون شول
٥٨ او دَ خپلو اوچتو ځايونو په سبب ئې
غضبناک که
او په خپلو تراشلو بُتانونو ئې په غيرت که
٥٩ الله چه دا واوريدل نو په غُصّه شه
او له اسرائيلو ئې ډير نفرت وکه
٦٠ ځو چه دَ شِيلو مَسکَنَ ئې ترک که
هغه تنبو چه خلقو کښې ئې ودرولې وه
٦١ او خپل قوّت ئې په بند ورکه
او خپل حشمت ئې دَ دُشمن په لاس
٦٢ خپل قوم ئې تُورو ته وسپاره
او په خپل مِيراث غضبناک شه
٦٣ دَ هغو ځوانان ئې په اور وسيځل
او دَ هغوي په پيغلو دَ واده غزل نه وه
٦٤ کوهينان ئې په تُوره پريوتل
او کونډو ئې وِير و نه که
٦٥ پس خداوند وِيښ شه لکه له خوب
دَ جبّار په شان چه دَ شرابو له سبب
غوغا کوي
٦٦ نو ده دَ خپلو دُښمنانو په شان ووهل
او هميشه رسوائي ئې ورکړه
٦٧ او دَ يوسف خيمه ئې ترکه کړله
او دَ اِفرائِيمْ فرقه ئې غوره نه کړه
٦٨ مګر دَ يهودا فرقه ئې غوره کړه
دَ صيحون غر چه دَي پرِ مَيَن وه
٦٩ او خپل مَقدِس ئې دَ اوچت ځايونو
په شان جوړ کړ
لکه دَ زمکې چه تر ابده پورې ئې قائمه
کړې ده
٧٠ او بنده خپل داؤد ئې غوره که
او دَ ګډو له شپلونو ئې راوړيو
٧١ دَ لنګو ګډو دَ ورستو تللو نه ئې راوستل
يعقوب دَ خپل قوم دَ ځرولو دَپاره او دَ
اسرائيل خپل ميراث
٧٢ ده دَ خپل زړه دَ راستئ سره هغه
وڅړول
او دَ خپلو لاسو له حکمت سره ئې
هغو ته رهنمائي وکړه

## نه اويام

مزمُور دَ آصف

١ اي الله غير قومونه ستا په ميراث
کښې داخل شول
ستا مُقدَّس هيکل ئې نجس که

او اورشليم يې ډېرۍ ډېرۍ که
٢ ستا دَ بندګانو لاشونه يې دَ آسمانِي
مَرغانو خوراک کړل
ستا دَ تقوىٰ دارانو غوښې يې دَ زمکې دَ
وحشيانو
٣ دَ هغوي وينې يې دَ اورشليمَ کيرچاپېره
دَ اوبو په شان توي کړلي
او هيڅوک يې ښخونکي نه وُو
٤ مونږ په خپلو ګاونډيانو کښې رسوا شوُو
هغوته چه رانه چاپېردي مسخره او
خندا شوُو
٥ اي يهوه ته به ترڅو پورې غضبناک
يې تر ابده پورې څه ؟
ستا غيرت به دَ اور په شان سوځي
څه ؟
٦ په هغو غيرِ قومونو چه تا نه پېژني خپل
قهر نازل کړه
او په هغو ملکونو بانډِ چه نوم ستا
نه اخلي
٧ ځکه چه هغو يَعقُوب ونغړه
او دَ ده استوګنه يې خرابه کړه
٨ زمونږ دَ پلرونو نيکونو بدکارۍ په
مونږ بانډِ مه يادوه
خپل رحمتونه مونږ ته زر راوړانډِ کړه
ځکه چه ډېر کوز شوي يو

٩ اي زمونږ دَ نجات الله زمونږ مدد وکړه
دَ خپل نوم دَ جلال دَ پارَ
او خلاص مو کړه او کفاره ورکړه زمونږ
دَ خطا له سببَ ستا دَ نوم دَ پارَ
١٠ ولې دِ غير قومونه وايي چه دَ هغوي الله
چرته دي
دَ خپلو بندګانو دَ بهيدلو وينو قصاص
دَ غير قومونو په مخ کښې زمونږ په
نظر کښې دِ معلوم شي
١١ ستا په مخ کښې دِ دَ قيديِ اسوېلي
درشي
او په خپل لوي قدرت سره هغه
چه دَ مرګ دَ پارَ مقرر شوي دِي
وئي ساته
١٢ زمونږ ګاونډيانو له اوو واره دَ هغو
په غېږ کښې ورو ګرزوه
دَ هغوي رسوايي چه هغوي تا له اي
خداوندَ رسوا کړي دَي
١٣ نو مونږ چه ستا قوم او ستا دَ څرځاګاه
رمي
تر ابده پورې به ستا شکر کوُو
او پښت په پښت به ستا مدحه ظاهروُو

## اتيام

سردار دَ سرودګرو دَ پاره - دَ شوشنيم عدُوث پوزن
مزمور - دَ آصف -

۱ اي شپونه دَ اسرائيلو غوږ ونسه
چه ته يُوسف دَ گلي په شان بيايي
ته چه په کروبيو باندِ کښيني روښانه شه
۲ او دَ اِفرائيم او دَ بِنيامين او دَ مَنَسّي
په مخ کښ خپل قوّت وخوځوه
او ځمونږ دَ نجات دَپارَ راشه
۳ اي الله مونږ را وگرزوه
او خپل مخ روښانه کړه نو مونږ به
نجات بيامومو
۴ اي يهوه دَ لښکرو الله
ترکومه پوري به دَ خپل قوم په دُعا
غضبناک يې
۵ ته په هغو دَ اوښکو خوراک وخوروه
او دَ اوښکو ډک اوډِي پرِ وڅښوه
۶ ته مونږ له دَ جګړي سبب گرزوي ځمونږ
گاونډيانو ته
او ځمونږ دُښمنان په خپل منځ کښ
خنداکوي
۷ اي دَ لښکرو الله مونږ را وگرزوه
او خپل مخ روښانه کړه نو مونږ به نجات
بيامومو
۸ تا له مصرنه يو تاک راوويست
او غير قومونه دِ خارج کړل هم هغه
دِ نِهال که
۹ او دَ هغه دَ وړاندِ دِ ځاي تيار که
او دَ هغه ولي دِ په کښ مضبوطي کړي-
پس زمکه يې ډکه کړه
۱۰ او دَ هغه په سوري غرونه پټ شول
او دَ هغه ښاخونه دَ الله دَ نښتر په
شان وُو
۱۱ هغه خپلي څانگي تر درياب پوري
وغوړولي
او ولي يې تر سينده پوري
۱۲ پس تا دَ هغو شپلونه وَلي ونړول
چه په لاري تيريدونکي يې شوکوي
۱۳ دَ ځنګل سرکوزي يې خرابوي
او دَ صحرا وحشيان يې خوري
۱۴ اي دَ لښکرو الله را وگرزه مونږ تا ته
زاري کوُو
له آسمانونو نه نګاه وکړه او وگوره او دِي
تاک ته نظر وکړه
۱۵ او هغه تَنه چه ستا ښي لاس نِهال کړه
او هغه ښاخ چه دَ خپل ځان دَپارَ
دِ مضبوط که
۱۶ هغه په اور سوَي دَي هغه پري کړي
دَي
هغه ستا دَ خُهري له دهشته هلاکيږي
۱۷ ستا لاس دِ ستا دَ ښي لاس په سړي
باندِ وي
په بني آدم باندِ چه تا دَ خپل ځان دَپارَ

مضبوط کړي دي
۱۸ موږ به له تا نه و نه ګرزو
موږ ژوندي کړه او موږ به ستا نوم يادکړو
۱۹ اي يهوه دَ لښکرو الله موږ بيرته
راوګرزوه
خپل مخ روښانه کړه چه موږ به نجات
بيا مومو

## يواتيام

سردار دَ سرودګرو دَپارَ - دَ ګِتيتْ په وزن -
مزمور دَ آصف
۱ خُموږ دَ قوّت الله ته سرود وغږوئ
دَ يعقوب الله ته ناري وکړئ
۲ مدحه راواخلئ او طَنْبَلْ وغږوئ
خوش آوازي دَ سِتارْ له سَرِنْدي سره
۳ او دَ نوي مياشتي تُوَرئ وغږوئ
په پوره مياشت خُموږ دَ اختر په
ورځ باندِ
۴ ځکه چه دا دَ اسرائيل حکم دَي
او دَ يَعْقُوب دَ الله عدالت
۵ هم دغه ئي په يُوسف دَګواهيْ دَپارَ
مقرّر کړل
چه دَ مصر په زمکي بهر ووت
هلته مِ ژبه واوريده چه زه پرِ نه
پوهيدلم
۶ ما دَ هغه اوږه له بارَ آزاده کړه
لاسونه ئي له ټوکرئ نه خلاص شول
۷ تا په تنګسَتيْ کښ فريادوکه او ما
خلاص کړي
او له ګرريدلو له پردي نه مِ ځواب
درکه
دَ مَرِيبا په اوبو مِ ته وآزمايلې (سلاه)
۸ اي خُما خلقو واورئ - او زه به په تاسو
ګواهي ولم
اي اسرائيلو که چرې تاسو خُما اورئ
۹ پَردي خداي به په تا کښ نه وِي
او پَردي الله ته سجده مه کوئ
۱۰ زه يهوه ستا الله يم
ته مِ دَ مصر له زمکي بهر راويستلي
خپله خوله وازه کړه زه به ئي ډکه کړم
۱۱ ليکن خُما خلقو خُما آواز وانه وريده
او اسرائيل زه قبول نه کړم
۱۲ نو ما هم هغه دَ خپلو زړونو سختو
ته پرينښول
او دوي دِ په خپلو مصلحتونو کښ لاړ
شي
۱۳ کاشکي چه خُما خلقو خُما اوريدلي وَي
او اسرائيل خُما په لارو تللي وَي
۱۴ نو ما به زر دَ دوي دُښمنان ذِليل
کړي وُو
او دَ دوي په غُليمانو به مِ خپل لاس تير کړي وُو

۱۵ کینه لرونکي دَ هوه به خپل ځان تابعدار کړي
مګر دَ هغوي وقت به ترابده پوري وي
۱۶ او ډیر ښه غنم به ئي ور خوړول
له ګبین نه به م په ښاتو سړول

## دوه اتیاام

مزمور دَ آصف

۱ الله دَ الله په جماعت کښ ولاړ دَي
دَ خدایانو په منځ کښ الله عدالت کوي
۲ تاسو به ترکومه پوري په بي انصافۍ سره
عدالت کوئ
او دَ شریرانو طرفداري به کوئ (سلاه
۳ دَ مسکینانو او دَ یتیمانو انصاف کوئ
دَ ضعیفانو او دَ حاجتمندانو عدالت کوئ
۴ کمزورو او حاجتمندو لره خلاص کړئ
دَ شریرانو له لاسونو ئي خلاص کړئ
۵ هغه نه پوهیږي او فهم نه کوي
او په تیاره کښ ګرځي
ټول بنیادونه دَ زمکي خوځیږي
۶ ما خو وویل چه تاسو خدایان یئ
او تاسو ټول دَ حق تعالیٰ فرزندان یئ
۷ لیکن دَ بني آدم په شان به مړه شئ
او په مثل دَ یوه دَ سردارانو به پریوزئ
۸ اي الله پورته شه دَ زمکي عدالت کوه
ځکه چه ته به دَ ټولو غیر قومونو
میراث واخلي

## دري اتیاام

غزل - مزمور - دَ آصف

۱ اي الله ته مه چپ کیږه
خاموشه مه اوسه - او سکوت مه کوه
اي الله
۲ ځکه ګوره چه دُښمنان ستا غوغا پورته
کوي ٠
او هغه چه تا سره کینه کوي سري
پورته کړي دي
۳ ستا دَ خلقو په برخلاف مصلحت
سره کوي
او ستا دَ پټو شیو په خلاف سره
خبري کوي
۴ نو وئي ویل راشئ هغه پري کړو
چه قوم نه شي
بیا دَ اسرائیل نوم په ذکر کښ رانه شي
۵ ځکه چه ټولو په زړه سره مصلحت
وکه
او ستا په برخلاف وعدي جوړوي
۶ خیمه دَ اَدُوم او اسمٰعیلیانو
مُوآب او هاجریانو
۷ جبال او عمون او عمالیق
فلسطین سره دَ اوسیدونکیو دَ صور
۸ اشور هم ورسره شامل دَي
دَ لوط دَ اولاد مددګار شول (سلاه

۹ ته ورسره وکړه لکه چه له مَدِیَنیانو
سره
لکه چه سِیسَرا سره لکه یَابِیَن سره
دَ قِیشُون په درياب باندِ
۱۰ چه په عَین دَور کښې هلاک شول
او دَ زمکي دَپارَ سَرَه شول
۱۱ دَ هغو سرداران وکړه په مثل دَعُورِیب
او ذَئِیب
بلکه دَ هغو ټول سرداران دَ ذِبیه او
دَ ضَلمَنَغ
۱۲ چه وئې ويل چه راشئ ځان په وراثت
ونِیسُو
دَ الله چراګاه
۱۳ اي ځما الله هغوي دَ بَربُوکئ دګرد په
شان کړه
دَ بُوسو په شان چه دَ باد دَ وړاندِ
دِي
۱۴ لکه اور چه ځنګل سیځي
یا لکه لَمبَه چه غرونه لَمبَه کوي
۱۵ هم هسي ته هغوي په خپلو سِیلیو
سره ونشړه
او په خپل طوفان سره ئې وویروه
۱۶ دَ هغوي خولي له رسوائ نه ډکي کړه
تاچه هغوي اي يهوه ستا دَنوم طالبان
شِي
۱۷ ترابده پوري دِ شرمنده او پریشانه
شِي
هغوي دِ رسوا او فنا شِي
۱۸ و دِ پوهیږي چه نوم ستا یَهُوَه دي
فقط ته په ټوله زمکه باندِ حق تعالیٰ يي

## څلور اتیاام

سردار دَ سرود کړو دَپارَ- دَ ګِتِیت په وزن-مزمور
دَ قورح دَ ځامنو
۱ ستا مسکنونه څنګه دلکش دِي
اي دَ لښکرو يهوه
۲ ځان ځما دَ يهوه دَ بارګاهو مشتاق
بلکه بيخوده دَي -
زړه او جسم ځما اِلٰهُ الحَيّ ته ناري وهي
۳ چڼچڼي خپل کور وموند
او آبابِیل هم جاله دَخپل ځان دَپارَ
چه په هغو کښې خپل بچي ایږي
ستا مذبحونه اي دَ لښکرو یَهُوَهُ
ځما بادشاه او ځما الله
۴ مبارک دي هغه سړي چه ستا په کور
کښې اوسي
هغوي به مدام ستا حمد وايِي (سلاه
۵ مبارک دي هغه سړي چه قوت ئې
په تا کښې دَي
په زړه کښې ئې ستا لاري دِي (صیحون ته)
۶ هغوي دَ ژړا په خوړ کښې تیریږي او چیني

ځاي جوړوي
هو باران ئې پټوي په برکتونو سره
۷ هغوي له قوّت نه قوّت ته پورې ځي
په صيون کښ د الله په حضور کښ
حاضريږي
۸ اي يهوه د لښکرو الله دُعا ځما واوره
اي د يعقوب الله وئې نغوږه (سلاه
۹ اي الله ځمونږ ډالَ ته نظر وکړه
او د خپل مسيح مخ ته وګوره
۱۰ ځکه چه يوه ورځ ستا په بارګاهو
کښ تيره ښي-له زرګونو ښه ده
د الله په کور کښ په دربان کيدلو زه
خوښوم
د شرارت د خيمو له استوګني نه
۱۱ ځکه چه يهوه الله نمر او ډال دي
يهوه به فضل او لوئي ورکړي
له هغو نه به چه په راستيِ سره
ځي-هيڅ نيکي منع نه کړي
۱۲ اي يهوه د لښکرو
مبارک هغه سړي دي چه په تا تکيه کوي

## پنځه اتيام

سردار د سرود کرو د پاره- مزمور د قورح د ځامنو
۱ اي يهوه ته په خپلي زمکي باندِ راضي
شوي يي
او تا د يعقوب قيد را وګرزاوه
۲ تا د خپلو خلقو ګناه عفوه کړه
ټوله خطا د هغو دِ پټه کړه (سلاه
۳ او تا ټول خپګان خپل لري که
د خپل قهر له جوش را وګرزيدلي
۴ اي ځمونږ د نجات الله مونږ را وګرزوه
او خپل قهر له مونږ تمام کړه
۵ ته به مدام په مونږ باندِ غضبناک
يي څه ؟
پشت تر پُشتَ پوري به خپل قهر
راکاږي څه ؟
۶ مونږ به بيرته ژوندي نه کړي څه ؟
دي د پارَ چه ستا خلق له تا نه خوښ
وِي
۷ اي يهوه مونږ ته خپله مهرباني را وښيه
او خپل نجات مونږ ته راکړه
۸ هر څه چه يهوه الله وفرمائي زه به
ئې واورم
ځکه چه دي به خپلو خلقو او خپلو
تقوي دارانو ته د سلامتيا خبري وکړي
هغوي دِ بيا د احمقيِ په لوري د
نه ګرزي
۹ په يقين سره د ده نجات د ده ويريدونکيو
ته نزدي دي
تا چه ځمونږ په زمکه کښ جلال واوسي
۱۰ مهرباني او راستي سره يو ځاي شول

صداقت او سلامتیا سره ښکل کړل
۱۱ راستي له زمکي نه زرغونيږي
او صداقت له آسمانه کوز نظر وکه
۱۲ هو يهوه هغه چه ښه دي وبه بخښي
او ځمونږ زمکه به حاصل ورکړي
۱۳ ده په حضور کښ به صداقت روان وي
غنه به په خپلو قدمونو لاره جوړه کړي

## شپږ اتيام

دعا د داؤد

۱ اي يهوه خپل غوږونه راته ونسه او
ځواب راکړه
ځکه چه زه غريب او محتاج يم
۲ ځما ځان وساته ځکه چه زه ستا تقوي دار يم
اي ځما الله خپل بنده له نجات ورکړه
چه په تا تکيه کوي
۳ اي خداوندَ په ما فضل وکړه
ځکه چه زه ټوله ورځ تا ته فرياد کوم
۴ ته دَ خپل بنده ځان خوشحال کړه
ځکه چه تا ته اي خداوندَ زه خپل
ځان پورته کوم
۵ دي دَ يارَ چه ته اي خداوندَ نيک يئ
او معاف کولو ته تيار يي
او په هغو ټولو چه تا ته فرياد کوي رحيم
يي
۶ اي يهوه ما ته غوږ ونسه
او ځما دَ مناجات په آواز متوجه شه
۷ زه به دَ تنګدستئ په ورځ کښ تا ياد کړم
ځکه چه ته به ځواب راکړي
۸ اي خداوندَ په معبودانو کښ هيڅوک
ستا په شان نشته
او ستا دَ کارونو په شان هيڅ نشته
۹ اي خداوندَ ټول غير قومونه چه تا پيدا
کړي دي تا ته به راشي او ستا په
حضور به سجده وکړي
او ستا دَ نوم جلال به ووايي
۱۰ ځکه چه ته لوي يي-او عجائب کارونه کوي
ته واحد الله يي
۱۱ اي يهوه ما ته خپله لار راوښيه-
زه به ستا په راستئ سره روان شم
زړه مې جمع کړه چه زه ستا له نومه ووېرېږم
۱۲ اي خداوندَ ځما الله زه به په خپل ټول
زړه سره ستا جلال وکړم
او ستا دُ نوم لويئ به ترابده پوري
وستايم
۱۳ ځکه چه ستا مهرباني په مونږ باندې
لويه ده
او ځمونږ ځان دې له هاويې خلاص که
۱۴ اي الله مغروران را باندې را وختل
او ټولي دَ ظالمانو ځما دَ ځان طلبګار
دَي

او ته ئې په خپل نظر کښې رانه وړې
۱۵ مګر ته اې خداوندَ رحیم او کریم الله یې
په قهر کښې سُست او له مِهربانئ او
له رښتینئ نه ډک
۱۶ ما ته راوګرزه او په ما باندِ رحم وکړه
او خپل قوّت خپل بنده ته ورکړه
۱۷ او ځما دَ ښیګړې دَپارَ یوه نښه راښکاره
کړه
چه ځما کینه کونکې ئې ووینې-او شرمنده
شي
ځکه چه اې یهوه تا ځما مدد وکه
او ماله دِ تسلّي راکړه

## اووه اتیا ام

مزمور دَ قورح دَ ځامنو-غزل

۱ دَده بنیاد په مُقدّسو غرونو کښې دَی
۲ یهوه دَ صیحون په دروازو باندِ مینه کوي
دَ یعقوب دَ ټولو مسکنونه نه زیاته
۳ جلالي خبري ستا په حق ویلې کیږي
اې دَ الله ښهرَ (سلاه
۴ زه دَ راحاب او دَ بابلَ ذکر کوم دَخپلو
اشنایانو په منځ کښې
ګوره فلِسطِ او صُورَ له کُوشه سره
دا هلته پیدا شوي ده
۵ هو دَ صیحون په باب کښې به ئې ویلې وي
چه فلانئ او فلانئ په ده کښې پیدا
شوي وه
او حق تعالیٰ به ئې په خپله ثابت کړي
۶ یهوه به په شمار کړي چه اُمّتونه لیکي
چه فلانئ هلته پیدا شوي وه (سلاه
۷ هم به غزل ویونکي او هم به ګډیدونکي
وائي
ځما ټولې چینې په تا کښې دِي

## اته اتیا ام

غزل - مزمور- دَ قورح دَ ځامنو- سردار دَ
سرودګرو دَپارَ دَ مَحلَث لَعَنّوت په وزن-
مَسکِیل- دَ حِیمانِ اِزراحي

۱ اې یهوه ځما دَ نجات الله
ما شپه او ورځ ستا په حضور کښې
فریاد وکه
۲ دُعا ځما دِ ستا حضور ته ورسي
ته ځما فریاد ته غوږ ونیسه
۳ ځکه چه ځما ځان له غمونو ډک دَی
او ژوند ځما هادیرِ ته نژدې شوي دَی
۴ په هغو کښې چه دوغل ته کوزیږي شمارلي
شوي یم
زه دَ هغه سړي په شان شوي یم چه
قوّت نه لري
۵ زه دَ مړیو په منځ کښې غورزولي شوي
یم
دَ وژلیو په شان چه په قبر کښې

ملاست وِي
چه ته يې بيا نه يادوي
بلکه ستا له لاسَ پرېکړِي شوِي دِي
۶ تازه په کُوزَ کنده کښې کېښودم
په تيارې کښې په ژوره کښې
۷ غضب ستا راباندِ سخت پرېوزي
او زه په ټولو موجونو کښې وربروِلم
(سلاه)
۸ آشنايان دِ رانه لرې کړل
دَ هغو دَ نفرت سبب دِ کړلم
زه بندِي وم - او راوتلې نه شولم
۹ سترګې مِې له غمه ضعيفې شوې
اې يهوه ما هره ورځ تا ته فرياد وکه
لاسونه مِې ستا په لورِې پورته کړه
۱۰ ته به عجائب کارونه دَ مړيو دَپارَ وکړې څه ؟
يا به مړِي پورته شِي - ستا شکر به وکړِي څه ؟ (سلاه)
۱۱ يا به مهربانِي ستا په قبر کښې ويلې شِي څه ؟
يا ستا رښتيني به په هلاکت کښې
۱۲ ستا عجائبات به په تيارې کښې معلوم شِي څه ؟
او صداقت ستا به دَ هېروالې په زمکه کښې
۱۳ مګر تا ته اې يهوه ما نارې وکړې
او دُعا څما به صباح ستا حضُور ته ورسيږِي
۱۴ اې يهوه ته ولې څما ځان ترک کوې ؟
او خپل مخ را نه پټوي
۱۵ زه له خپل هلکتوبَ خوار او په ځان کندن يم
چه زه ستا هيبتونه زغمم پرېشان يم
۱۶ ستا قهر په ما تېر شه
ستا دهشتونو هلاک کړم
۱۷ هغه ټوله ورځ دَ اوبو په شان راباندِ چاپېره کيږِي
او ټولو يوځاې سره ګير کړم
۱۸ محبوب او دوست دِ رانه لرې که
او پېژندګلو ئې مِې په تيارې کښې

## نه اتيام

مَسکيل - دَ اِيتَنَ ازراحِي

۱ زه به ترابده پورې دَ يهوه دَ مهربانيو غزل غږوم
ټولو پيړيو ته به ستا وفادارِي په خپلې خولې سره بيان کړم
۲ ځکه چه ما ووِ مهربانئِ به ترابده پورې ثابتې وِي
او خپله وفادارِي به په آسمانونو کښې ټينګه کړې
۳ ما له خپله غوره کړِي سره - وعده وکړه

له خپله بنده داؤد سره مِ سوګند وکړ
۴ زه به ستا اولاد ترابده پوري قايم کړم
او ستا تخت به پيړئ په پيړئ پايدار
کړم (سلاه)
۵ اي يهوه آسمانونه به ستا عجائب کارونه
وستائي
بلکه ستا رښتيني به دَ مُقدّسو خلقو
په ټولي کښ
۶ ځکه چه څوک به دَ يهوه به شان په
آسمانونو کښ وِي
څوک به دَ خدايانو دَ ځامنو په منځ کښ
دَ يهوه په شان وِي
۷ الله دَ قُدّوسيانو په مجلِس کښ هيبتناک
دَي
او په هغو ټولو چه دَده نه چاپيره
دِي سهمناک دَي
۸ اى يهوه دَ لښکرو الله
څوک دي زور آور لکه ته اي ياه
او ستا رښتيني له تا نه چاپيره ده
۹ ته دَ درياب په مغرورئ حکم کوي
چه موجونه پورته کيږي نو ته ئي قلاروي
۱۰ تا رَاحاب ټوټي کړ لکه چه وژلي شوي
دَ خپل بازو به زور دِ دُښمنان خپل
تار په تار کړه
۱۱ آسمانونه ستا دي. زمکه هم ستا ده
زمکه او دَ هغي آبادي تا بنا کړله
۱۲ قُطَب او سُهَيل تا پيدا کړل
تابُور او حَرمُون ستا په نُوم خوښي کوِي
۱۳ ستا بازو قوّت ناک دَي
ستا لاس قوِي او ښي لاس ستا اوچت
دَي
۱۴ صداقت او عدالت ستا دَ تخت بُنياد
دَي
مهرباني او رښتيني ستا په مخ کښ ځي
۱۵ مبارک هغه قوم دي چه خوش آوازئ پيژني
هغه ځي اي يهوه ستا دَ ديدار په
نُور کښ
۱۶ ستا په نُوم به ټوله ورځ خوشحاليږي
او ستا له صداقت به سرفراز کيږي
۱۷ ځکه چه دَ هغو دَ قوّت شوکت ته ئي
او ځمونږ ښکر به ستا په مِهر اوچت
کړي شي
۱۸ ځکه چه ځمونږ ډال دَ يهوه دي
او دَ اسرائيل قدّوس ځمونږ بادشاه
دَي
۱۹ ستا په رويا کښ خپلو تقوئ دارانو
ته خبري وکړي
او وئ وِ چه ما اچولې دَي کومک په زبردست
باندِ
غوره شوي له خلقونه مِ يو سرفراز که

۲۰ ما خپل بنده داؤد بیاموند
او په خپلو پاکو تیلو سره مې مسح که
۲۱ څما لاس به له ده سره محکم اوسي
او څما بازو به ئي مضبوط کړي
۲۲ دښمن به ظلم په ده باندې ونکړي
او نه به دَ شرارت څامن ضرر ور رسولی شي
۲۳ او زه به دَ ده غلیمان دَ ده په روبرو وټکوم
او دَ هغه کینه کونکي به ووهم
۲۴ مګر څما وفاداري او څما مهرباني به له ده سره وي
او ښکر دَ ده به څما په نوم سره هسک شي
۲۵ لاس دَ ده به په دریاب باندې کیږدم
او ښي لاس دَ ده به په سیندونو
۲۶ دي به ما ته ناري وکړي چه ته څما پلار ئي
څما الله او څما دَ نجات ګټ
۲۷ زه به دي مشر خوي کړم
دَ زمکي له بادشاهانو نه زیات لوي
۲۸ تر ابده پوري به خپله مهرباني په ده قایمه کړم.
او وعده څما به له ده سره مضبوطه وي
۲۹ اولاد دَ ده به تر ابده پوري هم پایدار کړم
او تخت دَ ده به دَ آسمان دَ ورځو په شان
۳۰ پس که چري دَ ده څامن څما توریت پریږدي
او څما په عدالتونو لاړ نه شي
۳۱ که هغوي څما دَ حکمونو نه وګرزي
او څما فرمان و نه ساتي
۳۲ نو به په امسا سره دَ هغو دَ ګناهونو سزا ورکړم
او په کوړو سره به دَ هغوي دَ بديو
۳۳ مګر خپله مهرباني به له هغو نه پرې نه کړم
او څما وفاداري به کمه نه شي
۳۴ خپله وعده به ماته نه کړم
او هغه خبره چه څما له خولي نه وتلي ده بدله به ئي نه کړم
۳۵ ما یو وار په خپلي قدوسیت قسم خوړلي دَي
چه زه به هرګز له داؤد سره دروغ و نه کړم
۳۶ دَ ده اولاد به تر ابده پوري وي
او تخت دَ ده به څما په حضور دَ نمر په شان وي
۳۷ تر ابده به دَ سپوږمۍ په شان قایم

کړي شي
او په آسمان کښې د امانتي ګواهۍ په شان
(سلاه
۳۸ مګر تا خو ترک که او سپک دِ وګڼړه
له خپله مسیحه بېزار شولي
۳۹ هغه دَ خپل بنده وعده حقیره کړه
دَ هغه تاج دِ په خاورو کښې ناپاک که
۴۰ ټول دیوالونه دَ هغه دِ ونړول
تا دَ هغه قلاّ ویراني کړي
۴۱ ټول په لاري تلونکي له هغه نه لوټ
کوي
هغه په خپلو ګاونډیانو کښې رسوا
کیږي
۴۲ دَ هغه دَ دښمنانو ښي لاس دِ اوچت
که
ټول دَ دښمنان دَ هغه دِ خوشحاله
کړل
۴۳ دَ هغه دَ تورې څ دِ ګرزولي دَي
او په جنګ کښې دِ ټینګ نه که
۴۴ تا دَ هغه روښنائي تمامه کړه
او دَ هغه تخت دِ په خاورو کښې
وغورزاوه
۴۵ دَ هغه دَ ځوانۍ ورځي دِ کوتاه کړي
او په شرمندګۍ سره دِ پټ که
(سلاه

۴۶ اي یهوه ترکومه نه ؟ آیا تر ابده پوري
به ځان پټ لړي څه ؟
ترکومه پوري به ستا غضب لنبي
کوي
۴۷ دا په یاد کړه چه څما عمر څومره لنډ
دي
دَ کوم عبث دَ پاره تا بنيِ آدم پیدا کړي
دَي ؟
۴۸ هغه سړي څوک دَي چه به ژوندي وي
او مرګ به ونه ویني
چه خپل ځان به دَ هادِیز له قبضي
نه خلاص کړي (سلاه
۴۹ اي خداونده هغه وړاندنۍ مهرباني
ستا چرته ده
چه داوُد سره دِ په خپل امانت کښې قسم وکه
۵۰ اي خداونده دَ خپلو بندګانو رسوائي
یاده کړه
چه ره څرنګه په خپلې غیږ کښې دَ ټولو
لویو قومونو دَ رسوائۍ برداشت
کوم
۵۱ چه ستا دَ دښمنانو رسوائي وکړه اي یهوه
چه ستا دَ مسیح دَ قدمونو رسوائي يې
کړي ده
۵۲ یهوه دِ تر ابدَالآباد پوري مبارک وي
آمین او آمین ٭

# څلورم کتاب

## نوي ام

دعا دَ موسیٰ - دَ خداي سړي

۱ اي خداوندَ ته څمونږ دَ استوګنې ځاي يې
پُشت په پُشت
۲ له هغه نه په خواچه غرونه پيدا کيدل
او تا زمکه او جهان جوړ کړل
له ازله تر ابده پوري ته الله يې
۳ ته انسان خاوري کوي
او وايې چه بيرته وګرزئ اي بني آدمو
۴ ځکه چه زر کاله ستا په نظر کښ
داسي دي لکه پرُون چه تير شه
او لکه پهَرَ په شپه کښ
۵ او ته هغوي لکه سيلاب وړي هغوي
لکه خوب دي
هغوي په صبحدم کښ لکه واښه چه زرغونيږي
۶ هغه په صبحدم کښ تازه کيږي او
لوئيږي
نماښام لوَ کيږي او وچ کيږي
۷ ځکه چه مونږ ستا په قهر کښ فنا
شوي يُو
او ستا په غضب کښ پريشان شوي يُو
۸ تا څمونږ ګناهونه په خپل نظر کښ
ايښي دي
څمونږ پټ تقصيرونه دِ دَ خپل حضُور
په روښنائي کښ
۹ ځکه چه څمونږ ټولي ورځي ستا په
غضب کښ تيري شوي
مونږ خپل کلُونه دَ خيال په شان
تمام کړل ۔
۱۰ څمونږ دَ کالونو ورځي اَويا دِي
يا که چري دَ قوت په سبب تر اتيا کالو
پوري وِي ۔
نو دَ هغه فخر محنت او رنځ دَي
ځکه چه زر تيريږي او مونږ اَلوزُو
۱۱ څوک ستا دَ قهر قوّت پيژني
او ستا غضب ستا دَ ويري په شان
۱۲ مونږ ته څمونږ دَ ورځو حساب را وښيَه
تاچه مونږ دَ زړه حکمت حاصل کړو
۱۳ اي يهوه بيرته راشه - ترکومه پوري؟
او په خپلو بندګانو بانډې نرم شه
۱۴ په صبحدم کښ مونږ په خپلو مهربانيو
سره ماړه کړه
چه مونږ ټولي ورځي خوښ او خورم اوسو
۱۵ مونږ خوشحال کړه موافق دَ ورځوچه تا
مونږ خپه کړي يُو
او دَ کالونو چه مونږ په کښ شړليدلي دَي

۱۶ خپل کار دِ خپلو بندګانو ته ښکاره کړه
او خپل شوکت دِ د هغه ځامنو ته
۱۷ نعمت دَ یهوه څمونږ دَ الله دِ په مونږ
باندِ وِي
او څمونږ دَ لاسونو کار په مونږ قايم
کړه
هو ته څمونږ دَ لاسونو کار ثابت کړه

## يو نوي يم

۱ هغه چه دَ حق تعالیٰ دَ پردي لاندِ
سکونت کوِي
دَ قادرِ مطلق تر سورِي لاندِ به اوسِي
۲ زه دَ یهوه په باب کښ وايم چه دي
څمونږ پناه او قلا دي
څمونږ الله چه په ده تکيه کوم
۳ هغه به تا دَ ښکار له جاله خلاص
کړي
او له هلاکونکي وبا نه
۴ دَي به دِ تر خپلو وزرو لاند پټ کړي
او دَ هغه دَ وزرو لاندِ به پناه ومومي
دَ هغه راستي به دِ ډال او زغره وِي
۵ ته به دَ شپي له ويرِي نه ونه ويرېږي
نه له غشي نه چه دَ ورځي پرتاو کیږي
۶ نه له هغې وبا نه چه په تیاري کښ ځي
نه له هغه طاعونه چه دَ غرمي په وقت
ويراني کوِي
۷ یو زر به ستا په لوري پریوزي
او لس زر به ستا په ښي لاس
لیکن تا ته به نږدي درتلي نه شي
۸ ته به فقط په خپلو سترګو نظر وکړي
او دَ شریرانو جزا به ووینې
۹ ځکه چه ته اي یهوه څما پناه یي
تا حق تعالیٰ خپل مسکن اختیار کړي دَي
۱۰ په تا به هیڅ آفت نازل نه شي
او هیڅ وبا به ستا خيمي ته نږدي در
نه شي
۱۱ ځکه چه دَي به ستا په حق کښ خپلو
فرښتو ته حکم وکړي
چه ستا ستا په ټولو لارو کښ وساتي
۱۲ هغوي به تا په خپلو لاسونو کښ ونیسي
هسي نه چه ستا پښي په کاڼي باندِ
ولګي
۱۳ ته به په زمري او په منګور باندِ پښي
کیږدي
او دَ زمري بچي او مار به تر پښو
لاندِ پايمال کړي
۱۴ ځکه چه هغه له ما سره مینه وکړه
زه به يي خلاص کړم
سربلند به يي کړم - ځکه چه هغه
څما نوم و پیژانده
۱۵ هغه به ما ته ناري ووهي - ځواب به

وركړم
زه به په تنګسټئ کښ له ده سره يم
زه به هغه خلاص کړم او عزت به
وركړم
۱۶ زه به هغه په دراز عمر موړ كړم
او خپل بخانه به ورښكاره كړم

## دو نویم

مزمور - دَ سَبَتْ دَ ورځي دَپارَ - غزل

۱ دَ يهوه شكر كول ښه دِي
او ستا دَ نامه مزمور غږول اي حق تعالیٰ
۲ صبا ستا دَ مهربانئِ مذكور كول
او په شپه كښ ستا دَ رښتنئِ
۳ په لَس تارِي ساز او په رباب سره
پــه سِتار باندِ له خوش آوازئِ سره
۴ ځكه چه تا اي يهوه زه په خپل كار
سره خوشحاله كړم
ستا دَ لاسونو په كارونو به ښادئِ
وغږوم
۵ اي يهوه ستا كارونه څومره لوي دِي
ستا فكرونه بيحده ژور دِي
۶ نادان سړَي نه پوهيږي
او جاهل ته نه معلوميږي
۷ هركله چه شريران دَ واښو په شان
ټوكيږي
او چه ټول بدكاران كامياب كيږي
نو دا ځكه چه دوي به ترابده پوري
فنا كړي شي
۸ مګر ته به اي يهوه ترابدالآباد پوري
يي
۹ ځكه چه ګوره ستا دُښمنان اي يهوه
ځكه چه ګوره ستا دُښمنان به هلاك
شي
ټول بدكاران به تار په تار شي
۱۰ مګر ښكر ځما دَ ځنګلي غوايه دَ ښكر
په شان اوچت كړه
په تازه تيلو به غوړ شم
۱۱ ستركه ځما به په دُښمنانو نظر كوي
غوږونه به مِ دَ هغو شريرانو خبري
چه ما ته پورته كيږي واوري
۱۲ صادق به دَ كجُوري دَ وني په شان
خور شي
هغه به لوئيږي لكه دَ نښتر په شان
پــه لُبنَان كښ
۱۳ هغوي چه دَ يهوه په كور كښ لګولي
شوِي دِي
نو څونږ دَ الله په دَلْبارونو كښ به
خور شي
۱۴ او هغه به په زوړوالي كښ هم ميوه
راوړي
او تروتازه او سيراب به وي

۱۵ تاچه داظاهر کړي چه یهوه راست دَي
هغه څماکڅ دَي او په ده کښ ناراستي
نشته

## دري نوي یم

۱ یهوه بادشاهي کوي هغه دَ شوکت
جامي اغوستي دِي
یهوه جامي اغوستي دِي په قوّت سره
ملا تړلي
جهان ئي هم قایم کړي دَي چه خوځیدلي
نه شي
۲ ستا تخت له قدیمه محکم دَي
ته له ازله یي
۳ سِیندونو پورته کړي دي اي یهوه
سِیندونو خپل آواز پورته کړي دَي
سِیندونو چپي پورته کړِي دِي
۴ دَ ډیرو اوبو له آوازونو نه پورته
دَدریاب له لویو موجونو نه
یهوه لوي دي په اوچت والي کښ
۵ ستا وعدي بيحده یقیني دِي
قدّوسي لایقه ده ستا دَ کور سره
اي یهوه تر اَبَدُالآباد پوري

## څلورنوي ام

۱ اي یهوه بدل اخستونکَي الله
اي بدل اخستونکَي الله روښانَ شه
۲ اي دَ جهان انصاف کونکَي پورته شه
مغرورو له بدل ورکړه
۳ اي یهوه شریران به ترڅو پوري
هو شریران چه ترڅو پوري فتحمند کیږي
۴ واهیات وايي دَ ګستاخئ خبري
کوي
ټول بدکاران به لافي کوي
۵ اي یهوه هغوي ستا اُمّت ریز مریز
کوي
او ستا میراث ربړوي
۶ کونډي او بیګانه وژني
او یتیمان قتلوي
۷ او وايي چه یاه به ئي و نه وینيي
نه دَ یعقوب الله به پوه شي
۸ اي وحشیانو دَخلقو وپوهیږئ
او اي جاهلانو کله به دانا شئ
۹ هغه چه غوږ ئي ټهال کړو نه به ئي آوري
څه ؟
هغه چه سترګي ئي جوړي کړي دِي
نه به ئي وِیني څه ؟
۱۰ هغه چه غیر قومونو ته تنبیه ورکوي
سزا به ورنه کړي څه ؟
هو هغه یهوه چه انسان ته علم
ورکوي
۱۱ یهوه دَ انسان خیالونه پیژني
چه هغه باطل دِي

۱۲ مبارک هغه سړی دی چه ته تنبیه
ورکوی-ای یاه
او له خپله تورېت تعلیم ورته کوی
۱۳ تاچه دغم په ورځو کښ آرام ورونښي
ترهسې حده چه د شریرانو دپار
کوهی وکنود شي
۱۴ ځکه چه یهوه به خپل خلق ترک
نه کړي
او خپل میراث به پری نږدي
۱۵ له دی سببَ چه عدالت به صداقت
ته راوګرزي
او ټول راستدلان به ورپسې شي
۱۶ څوک به څما دپار د شریرانو په مقابلې
پورته شي
څوک به څما دپار بدکارانوته ودریږي
۱۷ که چری یهوه څما مددګار نه وی
نوځان څما به زر په خاموشئ کښ
اوسیدلی وه
۱۸ چه مِ ووِ چه پښې څما ښویږي
نوای یهوه مِهربانئ ستا وساتم
۱۹ دېر فکرونه څما په منځ کښ دِي
تسلئ ستا ځان څما خوشحالَ کوي
۲۰ د شرارت تخت به له تاسره شراکت
وکړي څه ؟
چه شرارت په حکم سره مقرروي

۲۱ هغه د صادقانو د ځان په مخالفت
جمع کیږي
د بې تقصیره په وینو ګناه ثابتوي
۲۲ لیکن یهوه څما اوچت برج شوی دی
او الله څما د پناه ګټ دی
۲۳ د هغو ناراستي يې هغوته بیرته ور
وګرزوله
او هغوی به په خپل شرارت کښ تباه
کړي
هو یهوه څمونږ الله به هغوی تباه
کړي

## پنځه نوي ام

۱ راځئ چه د یهوه سرود وغږوو
مونږ د خپل نجات ګټ ته ناري ووهو
۲ مونږ به په شکرګذاري کولو سره د ده
حضور ته ورشو
په مدحه سره به ده ته د خوشحالې ناري ووهو
۳ ځکه چه یهوه لوی الله دی
او په ټولو حدانانو باندې لوی بادشاه دی
۴ چه د زمکي لوئې ژوری د ده په لاس
کښ دِي
او سوکي د غرونو هم د ده دِي
۵ دریاب د ده دی او ده پیدا که
او لاسونو يې حشکي پیدا کړي ده
۶ راځئ چه سونږ سجده وکړو او ټیټ شو

په حضور دَ يهوه څمونږ دَ خالق
زنګنونه ولګوو
۷ ځکه چه دَي څمونږ الله دَي
او مونږ دَده دَ څراګاه اُمّت يُو او دَده
دَ لاس ګډې يُو
نن ورځ کاشکي که تاسو دَ هغه آواز واورئ
۸ نو تاسو خپل زړونه داسي مه سختوئ
لکه چه په مريبا کښ
لکه دَ مسّا په ورځ په بيابان کښ
۹ هر کله چه زه ستاسو پلرونو وآزمايلم
تجربه څمائي وکړه - او کار څمائي وليد
۱۰ تر څلويښتو کالو زه له هغه پيړۍ نه
ناراض شولم
او وَ مِ ويل چه دا هغه قوم دَي چه
په خپل زړه کښ ګمراه دَي
او هغوي څما لار ونه پيژاندله
۱۱ نو ما په خپل قهر سره سوګند وخوړ
چه هغوي به څما په راحت کښ داخل
نه شي

## شپږ نوي ام

۱ يهوه ته يَو نوي غزل وغږوئ
اي ټولي زمکي دَ يهوه غزل وغږوه
۲ يهوه ته غزل وغږوئ - دَده نُوم ته
مبارک ووائئ
هره ورځ دَده نجات وښيئ
۳ دَ هغه جلال دَ غير قومونو په منځ کښ
ظاهر کړئ
عجائب کارونه دَده په ټولو خلقو کښ
۴ ځکه چه يهوه لوي دي او نهايت دَ ثنا
لايق دَي
او په ټولو معبودانو زيات هيبتناک دي
۵ ځکه چه دَ ټولو خلقو معبودان بتان
دي
ليکن يهوه آسمانونه جوړ کړل
۶ عزّت او بزرګي دَده په حضور کښ دي
قوّت او زينت دَده په مقدس کښ دي
۷ يهوه ته منسوب کړئ اي دَ خلقو قبيلو
يهوه ته منسوب کړئ جلال او قوّت
۸ يهوه ته منسوب کړئ چه دَ هغه
دَ نُوم لايق دَي
هديې راوړئ او دَده په دربار کښ داخل
شئ
۹ يهوه ته په پاک مقدس کښ سجده
وکړئ
اي ټوله جهانه دَده له حضوره وويريږئ
۱۰ په غير قومونو کښ ووائئ چه يهوه
بادشاهي کوي
جهان هم قايم دَي چه وبه نه خوځيږي
په راستئ سره به دَ خلقو عدالت
وکړي

۱۱ آسمانونه دِ خوښي کړي- او زمکه دِ
خوشحاله شي
درياب او دَ هغه ډک والي دِ غړنبا وکړي
۱۲ ګروندَه او هر هغه څه چه په هغې کښ
دي خوښي دِ وکړي
نو ټولي وني دَ ځنګل به خوښي وکړي
۱۳ دَ يهوه په حضُور ځکه چه دي راځي
دَ زمکي دَعدالت دَپارَ راځي
په صداقت سره به دَجهان عدالت وکړي
او په خپلي راستيۍ سره به دَ خلقو

## اووه نوي ام

۱ يهوه بادشاهي کوي زمکه دِ خوښي
وکړي
ډيري جزيري دِ خوشحالي کوي
۲ دَده په ګير چاپير اوريځي او تياري دي
صداقت اوعدالت دَده دَ تخت بُنياد
دي
۳ دَده په مخ کښ اور ځي
او دُښمنان ئي ګير چاپير سيځي
۴ دَده بريښناوُ جهان روښانه که
زمکي وليد او و لړزيد له
۵ دَ يهوه په حضُور کښ غرونه دَموم
په شان وِيلي شول
دَ ټولي زمکي دَخداوند په حضُور
۶ آسمان دَ ده صداقت بيانوي
او ټولو قومونو دَده جلال وليد
۷ هغه ټول چه دَ تراشلي بُت عبادت کوي
شرمنده دِ شي
چه په بتانو فخر کوي
اي ټولو خدايانو تاسو ده ته سجده وکړئ
۸ صيحون واوريدل اوخوشحاله شه
او لُونړه دَ يهُودَا خوشحاله شوي
اي يهوه ستا دَعدالتونو له سببَ
۹ ځکه چه ته اي يهوه په ټوله زمکه
پورته ئي
او په ټولو خدايانو باندِ ډير اوچت ئي
۱۰ اي دَ يهوه مينه کونکو له بديۍ نه نفرت
وکړئ
ځکه چه دي دَخپلو تقويٰ دارانو ځانونه
ساتي
هم دَي ئي دَ شريرانو له لاسَ خلاصوي
۱۱ دَ صادقانو دَپارَ نُور کرلي شوي دي
او دَ راست دلانو دَپارَ خوښي
۱۲ اي صادقانو تاسو له يهوه نه خوښ
شيۍ
او دَده دَ قدوسيۍ دَ يادَولو شکر وکړئ

## اته نوي ام

مزمُور-
۱ يهوه ته نوي غزل وغږوئ
ځکه چه ده عجائب کارونه کړي دِيا

دَ ده ښې لاس او دَ ده پاک بازو
ده ته نجات وباخښه
۲ يهوه خپل نجات ظاهر که
خپل صداقت ئې دَ غير قومونو دَ
وړاندِ مشهور که
۳ خپله مِهرباني او خپله وفاداري ئې
دَ اسرائيل دَ کور دَپارَ ياده کړه
دَ زمکې ټولو حدونو څمونږ دَ الله نجات
وليد
۴ اي ټولې زمکې دَ يهوه دَپارَ دَ خوښئ
ناره وکړه
لوي آوازوکړه او خوشحالي وکړه هو
مدحه وغږوه
۵ دَ يهوه دَپارَ په سِتار سره مدحه
وغږوئ
په سِتار سره او دَ سرود په آواز
سره
۶ په تُورَيو او دَ قَرنا په آواز سره
دَ يهوه بادشاه په حِضُور کښ خوښي
وکړئ
۷ درياب او دَ هغه ډک والي دِ غړمبيږي
دُنيا او هر څه چه په هغې کښ اوسي
۸ سِيندُونه دِ لاسونه ووهي
او غرونه دِ سره خوش آوازي وکړي
۹ دَ يهوه په حِضُور څکه چه دَي دَ زمکې
دَ عدالت کولو دَپارَ راځي
دَي به په صداقت سره دَ جهان
عدالت وکړي
او په راستيئ سره به دَ قومونو

## نه نوي ام

۱ يهوه بادشاهي کوي - قومونه دِ
ولړزيږي
هغه دِ په کرّوبيانو کښ اوسي زمکه
دِ وخوځيږي
۲ يهوه په صيحون کښ لوي دَي
او په ټولو قومونو باندِ اوچت دَي
۳ هغوي دِ ستا دَ لوي هيبتناک نوم
ثنا وکړي
هغه قُدُّوس دَي
۴ دَ بادشاه قوّت له عدالت سره مينه کوي
تا راستي قايمه کړله
عدالت او صداقت دِ په يعقوب
کښ وکړل
۵ تاسو دَ يهوه څمونږ دَ الله لوئي وکړئ
او دَ ده دَ پښو څوکئ ته سجده وکړئ
هغه قُدُّوس دَي
۶ موسیٰ او هارُون دَ ده دَ کوهينانو
په منځ کښ
او سموئيل دَ ده دَ نوم آخستونکيو
په منځ کښ

دوي يهوه ته ناري وكړي - او هغه ځواب
وركه
۷ دَ اوريځي له ستني نه ئي له دوي سره
خبري وكړي
هغو دَده شهادتونه و ساتل او هغه
حكم چه هغو له ئي وركه
۸ اي يهوه څمونږ الله تا هغو له ځواب
وركه
ته دَ هغو معافونكي الله وي
اګرچه ته دَ هغو دَ بداعمالئ بدله
آخستونكي وي
۹ تاسو دَ يهوه څمونږ الله لوئي وكړئ
او دَده په مُقَدَّس غره كښ سجده
وكړئ
ځكه چه يهوه څمونږ الله قُدُّوس دَي

## سلم

مزمُور - دَ شكرګذارئ

۱ اي ټولي زمكي يهوه ته دَ خوښئ
ناري وكړئ
۲ دَ يهوه په خوشحالئ سره عبادت وكړئ
دَده په حِضُور له سندرو سره راشئ
۳ تاسو پوهيږئ چه يهوه هغه الله دَي
چه مونږ ئي پيدا كړو - او مونږ دَهغه يُو
مونږ دَ هغه اُمَّت يو او دَده دَ ورشو
ګډي يُو
۴ دَ هغه په دروازو كښ په شكرګذارئ
سره داخل شئ
او په مدحه سره دَ هغه په غولي كښ
دَده شكر وكړئ - او دَده نُوم ته مبارك
ووايئ
۵ ځكه چه يهوه نيک دَي - دَده مِهربانئ
تر ابده دَه
او وفادارئ ئي پُښت په پُښت دَه

## يَوسل يَوَمْ

مزمُور دَ داؤد

۱ زه به دَ مِهربانئ او دَ عدالت په باب
كښ غزل ووايم
اي يهوه زه به تا ته مدحه وغږوم
۲ په كامله لار به له دانائئ سره لاړ شم
ته به ما ته كله راشي
زه به په خپل كور كښ په كامل زړه
سره وګرزم
۳ زه به په خپل مخ كښ دَ شيطان كار
كښني نږدم
دَ ګرزيدونكيو له كار سره به كينه
وكړم
هغه به له ما سره پيوست نه شي
۴ كوږ زړي سړي به له ما نه لري شي
له شرير سره به پيژندګلي و نه كړم
۵ هغه چه په پټه په خپل آشنا باندِ

عيب لګوِي زه به ئې هلاک کړم
دَ لوي نظرِي او دَ مغرور زړِي سړِي
زغم به و نه کړم
٦ خما سترګې دَ ملک په وفادارو باندِ دِي
چه هغوي له ما سره اوسِي
هغوي چه په کاملي لارِي ځي خما
خدمت به وکاندِ
٧ هغه چه فرِيب کونکِي دِي خما په کور
کښې به و نه اوسِي
دروغژن به خما تر نظر لاندِ پاتي
نه شِي
٨ زه به هر صبا ټول شريران دَ زمکي
وُرک کړم
تا چه دَ يهوه له ښهرَ ټول شريران
پرِيکړم

## يوَ سل دويم

دَ غمجن دُعا ـ هغه وقت چه خپه شِي ـ او
خپل شکايت په حِضُور دَ يهوه ورَسَوِي

١ اي يهوه خما دُعا واوره
او ناري خما دِ تا ته ورسيږِي
٢ او دَ تنګدستئِ په ورځ کښ خپل مخ
را نه مه پټوه
ما ته غوږ ونسه
هغه ورځ چه زه دِ وبولم نو زر ځواب
راکړه

٣ ځکه چه ورځي خما دَ لوګي په شان
تيرِيږي
او هډوکِي مِ دَ خشاک په شان سوځي
٤ زړه مِ دَ واښه په شان وهلَي او وچ
شوَي دَي
ځکه چه زه دَ ډوډئِ خوراک هيروم
٥ خما دَ اسوِيلي له آواز سره
هډوکِي مِ په غوښه پوري ونښتل
٦ زه دَ بيابانِي ماهِيخور په شان شولم
دَ وِيران ځاي دَ کُونګِي په شان شولم
٧ زه شَوګِيرَهُ کوم او شولم
دَ چنړچنړي په شان چه په کوټه باندِ
يواځي وِي
٨ دُښمنان مِ ټوله ورځ رسوايِي کوِي
او هغه چه په ما باندِ قهرژن دِي
ما ته ښکنځل کوِي
٩ ځکه چه ما اِيرِي دَ ډوډئِ په ځاي وخوړي
او له خپلو څښلو سره مِ اُښکي ګډي کړِي
١٠ ستا دَ قهر او دَ غضب له سببَ
ځکه چه زه دِ واخستلم بيا دِ وغورزولم
١١ ورځي خما دَ اوږد کړِي شوِي سُورِي په
شان دِي
او دَ واښه په شان وچ شولم
١٢ ليکن اي يهوه ته به تر ابده پوري
ناست يي

او ذکر ستا به پُښت په پُښت وي
۱۳ ته به پورته شي او په صيحون به رحمت
وکړي
ځکه چه په هغه باندِ دَ شفقت
کولو وقت دي هو دَ هغه مُعَيّن
وقت رسيدلي دي
۱۴ چه ستا بندګان دَ هغه کاڼړي خوښوي
او دَ هغه په خاورو باندِ شفقت
کوي
۱۵ غير قومونه به دَ يهوه له نُومه ووېرېږي
او ټول بادشاهان دَ زمکي به ستا
له جلاله
۱۶ ځکه چه يهوه صيحون جوړ کړي دَي
په خپل جلال کښِ ظاهر شوي دَي
۱۷ دي دَ محتاج دُعا ته متوجّه شوي دي
او دَ هغوي دُعائي سپکه ونه ګڼڑله
۱۸ دغه به دَ اُخِرِيني پيړئ دَپارَ وليکلي
شي
او هغه قوم چه پيدا کړي شي دَ ياهُ
حمد به ووايي
۱۹ ځکه چه ده دَ خپل اوچت مقدس وکتل
يهوه له آسمانه په زمکه نظر وکه
۲۰ تا چه دَ قيدِي زويرګئ واوري
دَ مرګ ځامن خلاص کړي
۲۱ چه په صيحون کښِ سري دَ يهوه نُوم
بيان کړي
او مدحه يُ په اورشليم کښِ
۲۲ کوم وقت چه قومونه جمع شول
او بادشاهتونه دَ يهوه دَ عبادت دَپارَ
۲۳ ده په لار کښِ ځما زور کم که
ورځي ځما يُ لنډي کړي
۲۴ ما ووِ اي ځما الله ځما دَ ورځو په منځ کښِ
ما مه وړه
ستا کلونه پُښت په پُښت دِي
۲۵ تا دَ زمکي بُنياد له قديمه کېښود
او آسمانونه هم ستا دَ لاسونو کاريګري
دي
۲۶ هغوي به نيست شِي- مګر ته به باقي يي
هو هغه ټول به دَ جامي په شان زاړه
شي
ته به يُ دَ جامي په شان بدل کړي
او هغه به بدل کړي شي
۲۷ مګر ته هغه يي
او ستا کلونه نه تماميږي
۲۸ ستا دَ بندګانو ځامن به اوسي
او دَ هغو اولاد به ستا په حضور کښِ
قايم کړي شي

## يَو سل دريم

مزمُور- دَ داؤد

۱ يهوه ته مبارک ووايه اي ځما ځانه

۱ او ټول چه ځما په منځ کښ دي دَده
مُقَدَّس نُوم ته دِ مبارک ووايِي
۲ يهوه ته مبارک ووايه اي ځما ځانه
او دَده نعمتونه مه هيروه
۳ هغه چه ستا ټول ګناهونه بخښيِ
چه ستا رنځونو ته شفا ورکوِي
۴ چه ستا ځان له له هلاکتَ شُفعَ ورکوِي
چه تا په مِهربانِيُ او په رحمتونو تاجدار
کوِي
۵ چه ستا خوله په ښوښو څيزونو آسوده
کوِي
ځوچه ستا ځوانِي تازه کيږِي لکه چه دَ
عُقابْ
۶ يهوه صداقتونه کوِي
او عدالتونه دَ ټولو مظلومانو دَپارَ
۷ هغه خپلي لاري ئي موسىٰ ته وښيلي
خپل کارونه ئي بنِي اسرائيلو ته
۸ يهوه رحيمِ او کريمِ دَي
په قهرکښ سُست او
ډير مِهربان دَي
۹ هغه به هميشه کِينه نه کوِي
او غُصّه به ترابده پوري نه ساتِيُ
۱۰ هغه ځمونږ له ګناهونو سره موافق له
مونږ سره سلوک ونه که
او ځمونږ له ګناهونو بدله ئي را نه کړه

۱۱ بلکه څنګه چه آسمانونه په زمکه باندې
اوچت دِي
دومره لويه دَهغه مهربانِي دَه په هغو
باندِ چه ترينه ويريږي
۱۲ لکه نمرخاته له نمرپرواته نه لري دَي
هومرهٔ ئي له مونږ نه ځمونږ تقصيرونه
لرِي کړل
۱۳ لکه چه پلار په خپلو ځامنو رحيم دَي
هم هسي يهوه په خپلو ويريدونکيو رحم
کوِي
۱۴ ځکه چه دي ځمونږ په خلقت خبردَي
هغه دا ياد لرِي چه مونږ خاوري يُو
۱۵ سړِي چه دَي ورځي ئي دَ واښو په شان
دِي
لکه ګُل دَچمن چه تازه کيږِي
۱۶ ځکه چه باد پرِ والوزي او هغه نه وِي
او هغه ځاي به بيا ونه پيژني
۱۷ ليکن مِهربانِي دَيهوه په هغو باندِ چه له
ده ويريږِي له ازلَ تر ابده پوري دَه
ودَ هغه صداقت دَهغه دَاولاد په اولاد
باندِ دَي
۱۸ هغو له چه دَهغه وعدې ساتِي
او هغو له چه دَ هغه حکمونه دَ عمل
کولو دَپارَ په ياد لرِي
۱۹ يهوه په آسمانونو کښ خپل تخت قايم کړ

او بادشاهت دَده په ټولو تسلّط کوي
۲۰ يهوه ته مبارک ووايئ اي تاسو دَ
هغو فرښتو
اي تاسو زورآورو چه دَ هغه خبري
پوره کوئ
او دَده دَ کلام آواز واورئ
۲۱ يهوه ته مبارک وايئ اي دَده ټولو لښکرو
اي دَده خدمتکارانو چه دَده مرضي
کوئ
۲۲ يهوه ته مبارک ووايئ اي دَ هغه
ټولو کارونو
دَ هغه بادشاهت په ټولو ځايونو کښ
يهوه ته مبارک ووايه اي څما ځانه

## يوسل څلورم

۱ يهوه ته مبارک وايه اي څما ځانه
اي يهوه څما الله ته ډير لوي يي
تا به عزّت او لويي اغوستي شوي دي
۲ چه ته په نور سره ځان پټوي لکه په
جامي
چه آسمانونه دَپردي په شان غوړوي
۳ چه دَخپلي بالاخانئ شهتير په اوبو
باندِ ږدي
چه اوريځي خپل کاډي جوړوي
چه دَ باد په وزرو باندِ ځي
۴ چه بادونه خپل استاځي جوړه وي
خپل خدمتکاران دَ اور شعلي
۵ چه ده دَ زمکي بنيادونه جوړ کړل
چه تر ابَدَ الآبادَ پوري به ونه ښوړلي شي
۶ ته يي په ژوري لکه په جامي پټوي
او به په غرونو باندِ ودريدلي
۷ دغه ستا دَ ترټلو نه وتښتيدلي
ستا له کړيدلو له آوازه وتښتيدلي
۸ غرونو ته پورته وختلي په خوړونو کښ
کوزي شولي
هغه ځاي ته چه تا دَ هغو دَپارَه جوړ که
۹ تا دَ هغو دَپارَه حد مقرّر که - چه له هغه
تيري نه شي
چه دَ زمکي دَ پټولو دَپارَ بيرته رانه شي
۱۰ دَي چيني بيَوِي په خوړونو کښ
دَ غرونو په منځ کښ ځي
۱۱ دي دَ بيابان هر يو حيوان ته څښل ورکوي
گورخر خپله تنده په هغو ورکه وي
۱۲ په هغو باندِ دَ هوا مرغان استوگنه کوي
دَ ښاخونو په منځ کښ آوازونه کوي
۱۳ له خپلو بالاخانو غرونو ته اوبه ورکوي
ستا دَ کاريگريو له حاصلاتَ زمکه آسوده
ده
۱۴ دي دَ چارپايانو دَپارَ واښه زرغونه وِي
دَ انسان دَخدمت دَپارَ سبزي
تاچه دوي له زمکي نه خوراک وباسي

۱۵ او شراب چه دَ انسان زړه خوشحاله
کوِي
او تيل چه دَ څهرې دَ ځلولو دَپارَ دِي
او ډوډئ چه دَ سړي زړه ته قوّت
ورکوِي
۱۶ دَ يهوه وني سيرابي دِي
دَ لبنان نښتر چه ده لګولي دِي
۱۷ چه هلته مرغان جالې جوړوِي
دِ ينګ چه دَي سروې دَ هغهٔ کور دَي
۱۸ اوچت غرونه دَ غرڅوو دَپارَ دِي
ګټونه دَ وَبَرو دَپارَ پناګاه دِي
۱۹ سپوږمَي ئې دَ موسمو دَپارَ مقرّر کړله
نمر خپل پريوتل پيژني
۲۰ ته تياره جوړوي نو شپه شي
چه ټول دَ ځنګل وحشيان په هغي
کښ په پسُوني ګرزي
۲۱ دَ زمرِي بچي په ښکار پسې غرنبيږِي
او له الله نه خپل خوراک غواړِي
۲۲ نمر راخيژي - نو دوي سره را ټوليږي
او په خپلو غارونو کښ څملي
۲۳ انسان په خپل کار پسې ځي
او په خپل خدمت پسې له ماښام پورې
۲۴ اي يهوه ستا کارونه څومره ډير دِي
تا هغه ټول په حکمت سره جوړ کړل
زمکه ستا له ماله ډکه ده

۲۵ هلته لوي او ارت درياب دَي
چه په کښ بې شمارَ خوځيدونکي دِي
او وړوکي او لوي حيوانات
۲۶ هلته بيړئ ځي
هم دغه لِويَثان چه تا پيدا کړي دِي تا
چه په کښ لوبي کوِي
۲۷ دا ټول ستا طرف ته تَوَجُّه کوِي
تاچه ته هغو ته په وقت سره خوراک
ورکړي
۲۸ او هغه چه ته ئې ورکوي - هغه ئې را
ټوله وِي
ته خپل لاس پرانزي - هغه په ښو ښو
څيزونو ماړه کيږِي
۲۹ ته خپل مخ پټوي - نو هغوي حيران شي
ته دَ هغو سا پسته اخلي - او هغوي
مړه کيږِي
او خپلو خاورو ته بيرته ورګرزي
۳۰ ته خپل روح وراستوي هغوي پيدا کيږي
او ته مخ دَ زمکي تازه کوي
۳۱ دَ يهوه جلال دِ ترابده وشي
يهوه دِ له خپلو کارونو نه خوښ شي
۳۲ چه په زمکه باندِ نظر کوي نو لړزيږي
دَي غرونه مَسَه کوِي نو لُوګي کيږي
۳۳ تر هغه پورې چه زه ژوندي يم دَ يهوه
دَپارَ به غزل وايم

ترڅو چه زه موجود يم دَ الله مدحه
به غږوم
۳۴ مراقبه مِ دِ دَ هغه دَپارَ شِيرِينَ وِي
زه به له يهوه نه خوښ اوسم
۳۵ خطا کاران دِ له زمکي نه ورک شِي
او شريران دِ هيڅري پاتي نه شِي
يهوه ته مبارک وايه اي څما ځانه
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

## يوسل پنځم

۱ دَ يهوه شکر کوئِ - دَ هغه نوُم يادوئِ
دَخلقو په منځ کښں دَده کارونه بيان
کوئِ
۲ دَده غزل ووايئِ دَده مدحه وغږوئِ
دَده په ټولو کارونو کښں مراقِبَه شئِ
۳ دَده دَ مُقَدَّس نوُم حمد ووايئِ
دَ يهوه دَ طالبانو زړه دِ خوشحالِي کوِي
۴ دَ يهوه اودَ هغه دَ قوّت طالبان شئِ
مدام دَده دَ ديدار طلبګار اوسئِ
۵ دَده عجائب کارونه چه کړي ئي دِي يادکړه
دَده نښاني او دَ هغه دَخولِي عدالتونه
چه ده فرمايلي دِي
۶ اي ته اولادَ دَ آبراهام دَ هغه دَ بنده
اي دَ غوره کړِي شوِي يعقوب ځامنو
۷ هغه يهوه څمونږ الله دَي
په ټوله زمکه دَ هغه عدالتونه دِي
۸ ده تر ابده پوري خپله وعده يادَ کړه
هغه خبره چه ده زرو پښتو ته وفرمايله
۹ هغه عهد چه له آبرٰهامَ سره ئي وکه
او دغه قسم چه ئي له اسحاق سره وخوړ
۱۰ او هغه ئي دَ يعقوب دَپارَ يوحکم مقرّرکه
دَ اسرائيل دَپارَ ئي يوه ابدِي وعده
۱۱ دائي وفرمايل - چه زه به دَ کنعان
زمکه تا له درکړم
ستا دَ ميراث ويش دَي
۱۲ هغه وقت چه دوي په شمارکښں کم ؤو
هو ډيرلږ ؤو - او په کښں بيګانه ؤو
۱۳ او قوم په قوم ګرزيدل
له يو بادشاهتَ تربله قومه پوري
۱۴ هيڅ سړِي له ئي په دوي باندِ دَ ظلم
کولو طاقت ورنه که
هو ده دَدوي دَپارَ بادشاهان ملامتَ
کړل
۱۵ وائي چه څما مسحه کړي شويو ته لاس
مه اچوئِ
او څما نبيانو ته ضرر مه رَسَوئِ
۱۶ ده هغي زمکي ته قحط وباله
هغه دَ ډوډئِ ټول سوټِي مات کړل
۱۷ ده دَ هغوځ کښں سړَي وليږه
يوسف دَ مرِيِ توب دَپارَ خرڅ شوي وه
۱۸ دَده پښي ئي په ځولانو خوږ کړِي

ځان دَده په اوسپني کښې داخل شه
۱۹ تر هغه پورې چه کلام دَده پوره شه
او دَ يهوه کلام دَي وازمايه
۲۰ بادشاه څوک ور واستاوه او دَي ئې
خلاص که
يعني دَ قومونو حاکم او آزاد ئې که
۲۱ هغه دَي دَ خپل کور مختار که
او په خپل ټول مال ئې مُسَلَّط که
۲۲ تاچه دَ هغه سرداران په خپله خوښې
سره وتړِي
او دَ هغه بزرګانو ته دانائي ور وښيي
۲۳ اسرائيل هم مصر ته راغي
او يعقوب دَ حام په زمکه کښې ووسيد
۲۴ او ده خپل خلق ډير زيات کړل
او دوي ئې دَ خپلو دښمنانو نه زوراور
کړل
۲۵ ده دَ هغو زړونه بدل کړل چه دَده
له قومَ سره کينه وکړي
چه دَده له بندګانو سره دغابازي وکاندِ
۲۶ نو ده خپل بنده مُوسىٰ وليږه
او هارُون چه ئې غوره کړي وه
۲۷ دوي دَ هغو په منځ کښې خپلي نښي
ښکاره کړي
او عجائب کارونه دَ حام په زمکه کښې
۲۸ ده تياره ور واستوله - نو تياره ئې کړه
او هغوي دَده له کلامَ نا فرماني ونه کړه
۲۹ اوبه دَدوي ئې په وينو بدلي کړي
او کبان دَدوي ئې مړه کړل
۳۰ دَدوي په زمکه چينګخي ډيري زياتي
شولي
دَ بادشاهانو په محلونو کښې
۳۱ ده حکم وکه او مچان زيات شول
او کُني دَ هغو په حدونو کښې
۳۲ دَ باران په ځاي ئې ږلۍ ورکړي
او دَ اور لمبي دَ هغو په زمکي
۳۳ دَ هغوي تاکونه او دَ انځرووني ئې ووهلي
او دَ هغو دَحدونو وني ئې ماتي کړلي
۳۴ ده حکم وکه ملخ راغلل
او ښکئَ بيحسابه
۳۵ دَ هغوي دَ زمکي ټولي زرغوني ئې
وخوړلي
دَ هغو دَ زمکي ټول حاصل ئې وخوړ
۳۶ په زمکه دَ هغوي ئې ټول ورنبي پيدا
شوي مړه کړل
ورنبي دَ هغو دَ قوت
۳۷ له سرو او له سپينو زرو سره ئې راويستل
او دَدوي په قوم کښې يو هم ضعيف
نه وه
۳۸ دَدوي په وتلو مصر خوشحاله شه
ځکه چه دَدوي دهشت په هغوي باندِ

پرېوتي وَه
۳۹ ده اوربځ دَ سورِي دَپارَ وغوړوله
او اور لِي دَ شپي دَ روښانه کولو دَپارَ
۴۰ دوي سوال وکه - او ده مَرځِيّ وروَرسولي
او په آسماني خوراک ئي ماړه کړل
۴۱ ده کټ وڅیره او به ئي ورنه جارِي
کړِي
اودَ نالي په شان په وچه وبهیدلي
۴۲ ځکه چه ده خپل مُقَدَّس کلام یاد که
او اَبرهام خپل بنده
۴۳ او خپل خلق ئي له خوښئ سره را ووېستل
او خپل غوره کړِي ئي له شادمانئ سره
۴۴ او دَ غیر قومونو زمکي ئي دوي ته ورکړي
او دَ قومونو حاصل ئي په میراث واخست
۴۵ تاچه دوي دَده حکمونه یاد ولري
او دَده تورِیت وساتي
اَلحَمدُ لِلّٰهِ

## یو سل شپږم

۱ اَلحَمدُ لِلّٰهِ
دَ یهوه شکر کوئ - ځکه چه دَي نیک
دَي
مهرباني دَده تراَبده ده
۲ څوک دَ یهوه قدرتونه بیانولي شي
یا دَ هغه دَ ټولو صفتونو حمد ښوولي
شي
۳ مبارک هغوي دي چه عدالت ئي ساتي
او هغه چه مدام دَ صداقت کار کوِي
۴ اي یهوه په هغه فضل سره چه په
خپل قوم ئي کوي ما هم یاد کړه
په خپل نجات راته متوجه شه
۵ تاچه زه ستا دَ غوره کړیو ښیګړه ووینم
چه ستا دَ قوم په خوشحالئ سره خوشحاله
شم
ستا په میراث سره حمد کوم
۶ مونږ سره له خپلو پلرونو او نیکونو
خطا وکړه
مونږ ګناه او شرارت وکه
۷ څمونږ پلرونو په مصر کښ ستا قدرتونه
ونه پېژندل
ستا ډېرِي مهرباني ئي په یاد نکړي
بلکه په دریاب باندِ یعني په دریابِ قلزم
باندِ ئي سرکښي وکړه
۸ لیکن ده دَ خپل نوم دَپارَ نجات ورکه
چه خپل لوي قدرت وښیي
۹ دریابِ قلزم ئي هم وترټه نو هغه
وچ شه
او هغوي ئي دَ ژوري له منځ لکه له
بیابانَ هدایت وکه
۱۰ او دَ کینه کونکیو له لاسه ئي نجات ورکه
او دَ دښمنانو له لاسه ئي شُفعَ کړل

۱۱ او دَ هغوي دُښمنان ئې داسي پټ کړل
چه يو هم ور نه پاتي نه شه
۱۲ هغو دَ ده په خبرو باندې ايمان راوړ
دَ هغه حمد ئې په غزل ووايه
۱۳ هغو زر دَ ده کارونه هير کړل
دَ ده دَ هدايت منتظر نه شول
۱۴ او په بيابان کښې ئې ډيره مستي وکړه
او په صحرا کښې ئې الله وآزمايه
۱۵ هرڅه چه ئې وغوښت نو ور ئې کړه
مګر دَ هغوي په ځانونو ئې خواري راوليږله
۱۶ په اردو کښې ئې له موسى سره کينه وکړه
له هارون سره مُقَدَّس دَ الله
۱۷ زمکه وچاوده او داثان ئې ونغړد
او دَ ابرام ټولي ئې پټ که
۱۸ او دَ هغو په ټولي اور ولګيده
دَ هغه لنبي شريران وسيځل
۱۹ هغو په حوريب کښې سخې جوړ که
وېلي شوي صورت ته ئې سجده وکړه
۲۰ دغه شان ئې خپل جلال بدل که
دَ غوايه په مثال چه واښه خوري
۲۱ او هغو خپل نجات ورکونکي الله هير که
چه لوي کارونه ئې په مصر کښې کړي وُو
۲۲ دَ حام په زمکه کښې عجائب کارونه
او په بحرِ قلزم کښې هيبتناک کارونه
۲۳ دَ هغو دَ هلاکولو دَپارَ ئې ووې
موسىٰ دَ ده غوره کړي شوي ئې په منځ
کښې ودريده
دَ هغه دَ غضب دَ راګرزولو دَپارَ چه
ئې هلاک نه کړي
۲۴ بلکه هغو هغه ښائسته زمکه سپکه
وګنړله
دَ ده په کلام ئې ايمان را نه وړ
۲۵ بلکه په خپلو تمبوانو کښې ئې ګِله وکړه
او دَ يهوه آواز ئې وانه وريده
۲۶ نو ده په هغو باندِ خپل لاس پورته که
چه په بيابان کښې ئې وپرزوي
۲۷ او دَ هغو اولاد په غير قومونو کښې پرېباږي
او په زمکو کښې ئې تار پتار کړي
۲۸ هغوي له بَعَلْ فَغُورَهْ سره مليا شول
او دَ مړيو قرباني ئې خوړلي
۲۹ داسي ئې په خپلو عملونو سره ناراض که
نو په دوي باندِ طاعون راغي
۳۰ پس فينحاس ودريده عدالت ئې وکه
نو طاعون بند شه
۳۱ او دا کار دَ هغه دَپارَ صداقت وګڼلي
شه
پيړۍ په پيړۍ تر ابده پوري
۳۲ هغوي بيا ذي دَ مريبا په اوبو باندِ
په غصه که
څو چه موسىٰ ته له دي سبب زيان

ورسیده .

۳۳ ځکه چه هغوی دده روح په غضب که

او شُونډو يې نا مناسب وويل

۳۴ هغه قومونه هلاک نه کړل

لکه چه يهوه حکم وکه

۳۵ بلکه له غیرقومونو سره ګډ شول

او دَ هغو کارونه يې زده کړل

۳۶ او دَ هغو دَ بُتانو عبادت يې وکه

چه دَدوي دَپارَ دام شه

۳۷ او خپل ځامن او لُونړه يې دَ شيطانانو

دَپارَ قرباني کړل

۳۸ او دَ بي تقصیرو وینې يې توي کړې هو

دَ خپلو ځامنو او لُونړو وينې

چه هغوي يې دَ کنعان دَ بُتانو دَ وړاندِ

ذبح کړل

او زمکه په وينو پَليته شوه

۳۹ نو داسي په خپلو عملونو پَلِيت شول

او په خپلو کارونو زِناکاران شول

۴۰ نو غضب دَ يهوه په خپلو خلقو باندِ په

جوش کښ راغي

او ده له خپل ميراث نه هم نفرت وکه

۴۱ او ده هغوي دَ غيرقومونو په لاسونو

کښ ورکړل

او هغوي چه له دوي سره يې کينه لرله

ورباندِ مُسَلَّط شول

۴۲ او دَ هغو دښمنانو په عذاب کړل

او دَ هغو تر لاسونو لاندِ تابعدار شول

۴۳ ده هغوي ډیر ځله خلاص کړل

ليکن په خپلو مصلحتونو سرکښه شول

او دَ خپلي ګناه په سبب کُوز کړې شول

۴۴ نو هم دوي مصيبت ولِيد

چه دَ هغوي ناري يې واوريدلي

۴۵ او هغه خپله وعده دَ هغوي دَپارَ

یادهراوړه

او دَ خپلي مِهربانئِ له زيات والي له سببَ

پښیمانه شه

۴۶ او ده هغوي له ورکه چه برکت بیاموي

له هغه ټولو چه قيديان کړي يې وُو

۴۷ اي يهوه څمونږ الله مونږله نجات راکړه

او مونږ له غير قومونو نه راټول کړه

ستا دَ نامه دَ شکر کولو دَپارَ

او ستا په مَدح کښ دَ فتحمندئ کولو

دَپارَ

۴۸ مبارک دِوي يهوه دَ اسرائيل الله

له ازله تر اَبَده پوري

او ټول خلق دِ وايي آمين

اَلحَمدُ لِلّٰهِ

# پنځم کتاب

## یوَ سل اوم

۱ دَ یهوه شکر کویٔ ځکه چه دَي ښه دَي
ځکه چه مهرباني ئ ابدي دَه
۲ دَ یهوه شُفعَ کړِي شوِي دِ وايي
چه دوي ئ دَ دښمن له لاسَ شُفعَ کړِي
دِي
۳ او دَ زمکو له حدونو نه ئ راټول کړل
له نمرخاته له نمر پريواته
له قُطبَ او له سُهَيله
۴ په بيابان کښ دَ صحرا په لار کښ وګرزيدل
دَ استوګني کولو ښهر ئ نه مونده
۵ وږي تږي
ځانونه ئ په کښ پريشانه شول
۶ پس هغوي په خپلي تنګئِ کښ یهوه ته
فرياد وکه
او ده هغو ته له خپلو تکليفونو نه خلاصي
ورکه
۷ هغوي ئ په سمه لار روان کړل
تاچه دَ اَستوګني ښهر ته لار شِي
۸ کاشکي که هغوي یهوه ته دَ هغه دَ
مهربانئِ دَپارَ شکرګذارِي وکړِي
او دَ هغه دَ عجائباتو دَپارَ بنيِ ادم ته
۹ ځکه چه دَي مشتاق ځان مړَوِي
او وږي ځان له نيکئِ نه ډَکوِي
۱۰ هغوي چه په تياري او دَ مرګ په
سورِي کښ ناست دِي
قيدکړِي شوِي په غم او په اوسپني دِي
۱۱ ځکه چه دَ الله له کلامه ئ نافرماني
وکړِه
او دَ الله تعالیٰ مصلحت ئ سپک وګڼره
۱۲ دي دَپارَ ده دَ هغو زړونه په مشقت
کولو ذليل کړل
هغوي پريوتل او هيڅوک ئ مددګار
نه وه
۱۳ پس هغوي په خپلي تنګئِ کښ یهوه ته
فرياد وکه
او ده هغو ته له تکليفونو نه نجات
ورکه
۱۴ اوله تياري او دَ مرګ له سورِي نه ئ
بهر را وويستل
او دَ هغو بندونه ئ وشلول
۱۵ کاشکي که هغوي یهوه ته دَ هغه دَ
مهربانئِ دَپارَ شکرګذارِي وکړِي
او دَ هغه دَ عجائباتو دَپارَ بنيِ آدم ته
۱۶ ځکه چه ده دَ زيړو دروازي ماتي کړي
او دَ اوسپني اَړَمونه ئ پريکړل

۱۷ احمقان دَ خپلو بدو له سببه
او دَ خپلو گناهونو له سببه عذابیږي
۱۸ نفسونه دَ دوي له هر قسمه خوراکه نفرت
کوي
او دَ مرگ دروازو ته نژدي رسیدلي
دي
۱۹ پس هغوي په خپلي تنگۍ کښ یهوه ته
فریاد کوي
او هغو له له تکلیفونو نه نجات ورکوي
۲۰ دي خپل کلام ورلیږي او هغوي جوړوي
او له هلاکتونو نه ئې خلاصوي
۲۱ کاشکي که هغوي یهوه ته دَ هغه
دَ مهربانۍ دَپاره شکرگذاري وکړي
او دَ هغه دَ عجایباتو دَپاره بني آدم ته
۲۲ دوي دِ دَ شکر ذبحي وکړي
په نارو سره دِ دَده دَ کارونو بیان
وکړي
۲۳ هغوي چه په جهازونو کښ دریاب ته
او په ډیرو اوبو کښ کارونه کوي
۲۴ هغه هم دَ یهوه کارونه وینې
او دَ ده عجائبات په ژورو کښ
۲۵ ځکه چه دي حکم کوي او سخت باد را
والوزوي
چه دَ هغه موجونه پورته کوي
۲۶ هغه دَ آسمان په لوري پورته خیژي
بیا په ژورو کښ کوزیږي
ځانونه ئې له ډېره ویلي کیږي
۲۷ دَ نشي خور په شان بیخوده گرزي او
زنگیږي
او ټول حکمت ئې ورک کیږي
۲۸ پس هغوي په خپلي تنگۍ کښ یهوه ته
فریاد کوي
او دي هغوي دَ خپلو تکلیفونو نه بهر
راوړي
۲۹ هغه طوفان په آرام کوي
څو چه موجونه ئې په قرار شي
۳۰ پس دوي خوشحاله شي چه آرام بیاموي
نو هغه دَ مقصود گودرونو ته ورسوي
۳۱ کاشکي که هغوي یهوه ته دَ هغه مهربانۍ
دَپاره شکرگذاري کوي
او دَ هغه دَ عجائباتو دَپاره بني آدم ته
۳۲ هغوي دِ دَ خلقو په ټولي کښ دَده لوئي
ووایي
او دَ بزرگانو په مجلس کښ دِ دَده مدح
وکړي
۳۳ دي سیندونه په بیابان بدلوي
او دَ اوبو چیني وچه زمکه
۳۴ میوه داره زمکه بنوره کوي
دَ هغو دَ اوسیدونکیو په شرارت
۳۵ بیابان په ډنډ بدلوي . او وچه زمکه

په چېنو
۳۶ او هلته وږي او سوي
تاچه د اوسيدلو د پاره ښهر جوړ کړي
۳۷ او کروندي وکړي- او د انګورو د پاره تاکونه
ولګوي
چه ميوه د حاصل تر واخلي
۳۸ دي هغوته برکت هم ورکوي څو چه
هغوي ډېر زيات شول
د هغوي څاروي به نه کموي
۳۹ او هغوي بيا کم شول او ذليل شول
او د ظلم او د آفت او د غم له سببه
۴۰ دي په اميرانو ذلت نازل کوي
او په ويرانۍ کښې بې لارې ګرزي
۴۱ دي خواران له خوارۍ نه راپورته کوي
او د هغو اولاد به د کنډک
په شان ډېر شي
۴۲ راستان به دا وويني او خوشحاله به
شي
او ټوله بدکاري به حيله خوله بنده کړي
۴۳ هر څوک چه هوښيار دي د خبره به
حفظ کړي
او هغوي به د يهوه په مهربانۍ باندې
غور وکړي

## يوسل اتم

غزل - سرود د داؤد

۱ خما زړه ټينګ دي اي الله
زه به غزل ووايم- هو زه به مدحه وغږوم
په خپل جلال سره
۲ ويښ شه اي ربابه او ستاره
زه به سحر ويښ شم
۳ اي يهوه زه به د خلقو په منځ کښې
ستا مدح وکړم
زه به د قومونو په منځ کښې ستا مدحه
ووايم
۴ څکه چه مهرباني ستا له آسمانونو نه
د پاسه پورته ده
او رښتيني ستا تر اوريځو پوري
۵ اي الله ته په آسمانونو باندې اوچت شه
او ستا جلال دې په ټوله زمکه د پاسه شي
۶ چه ستا محبوب خلاص شي
په خپل ښي لاس سره نجات راکړه-
او مونږ له ځواب راکړه
۷ الله په خپلې پاکۍ سره وفرمايل- چه
زه به خوشحال شم
او سکم به ووېشم- او د سکات خوړ
به کچ کړم
۸ جلعاد خما دي- او منسه خما دي
او افرائيم هم خما د سر قوت دي
او يهودا مې د بادشاهۍ عصا ده
۹ مواب خما د وينځلو لوښي دي

په آدوم به خپلې څپلۍ وروغورزوم
او په فِلسطِ به زه ناري کوم
۱۰ څوک به ما محکم ښهرته راولي
او چا زه آدوم ته بوتلم
۱۱ اي الله تا مونږ غورزولي نه یوځه؟
او ته اي الله څمونږ له لښکرو سره
نه وزې څه ؟
۱۲ ته دَ دښمن په مخالف مونږ له مدد راکړه
ځکه چه دَ انسان نجات عبث دَي
۱۳ مونږ به دَ الله په مددګارۍ سره بهادرۍ
وکړو
ځکه چه هم دَي به څمونږ دښمنان
پایمال کړي

## يوسل نهم

سردارِ سرودګرو دَپاره- مزمور دَ داؤد

۱ اي څما دَ حمدالله مه چپ کیږه
۲ ځکه چه دَ شرير خوله او دَ دغه بازخوله
ماته وازه شوي دَه
په دروغژنه ژبه سره ئې په ما خبري
وکړي
۳ او دَ کینې په خبرو سره ئې ګیر کړم .
او بې سببه ئې جنګ راسره وکه
۴ دَ محبت په بدله کښې مِ دښمنان شوٓ
ليکن زه په دُعا·
۵ او دوي دَ نیکۍ په عوض کښې بدي راسره
کړي دَه
او دښمني څما دَ محبّت په بدل کښې
۶ ته په هغه باندِ يو شرير مقرّرکړه
او دَ هغه په ښي لاس دِ شيطان ودريږي
۷ هرکله چه دَ هغه عدالت کيږي نو مجرم
دِ ووځي
او دَده دَعا دِ خطا وګڼلې شي
۸ دَده ورځي دِ لږي شي
او عُهدَه دَده دِ بل څوک واخلي
۹ زامن دَ ده دِ يتيمان شي او ښځه ئې ګُنډه
۱۰ اولاد دَده دِ دربدر وګرزي او دروزه دِ
وکړي
او له خپلو وِیرانو ځایونو نه دِ ډوډۍ
وغواړي
۱۱ سُودخور هرڅه چه دَده وي راودِ ئې
نِسي
او بيګانه دِ دَده ګټلي لُوټ کاندِ
۱۲ هيڅوک دِ نه وِي چه په ده مِهرباني
وکړي
داسي دِ هم څوک نه وِي چه دَده په
يَتيمانو باندِ تَرس وخوري
۱۳ اولاد دَده دِ پرې کړې شي
په بلې پيړۍ کښ دِ نوم دَده محوه شي
۱۴ دَ هغه دَ پلرونو نيکونو ګناه دِ دَ يهوه
په حضُور کښ مذکوري

او دَ دَه دَ مور خطا دِ محوه نه شي
۱۵ هغوی دِ مدام دَ یهوه په حضور کښ وي
تا چه دَ دوی ذ هغه یاد له زمکي نه ورک کړي
۱۶ ځکه چه ده مهرباني کول په یاد رانه وړل
مګر په غریب او په خوار سړه ئي ظلم وکه
او په شکسته دل ئي هم تا چه مړئي کړي
۱۷ هو هغه په لعنت مینه لرله نو ورو ته ورسیده
او برکت ئي غوره نه که نو تر لري شه
۱۸ لکه چه ده لعنت دَ جامي په شان واغوست
هغه په کلمو کښ دَ اوبو په شان راغي
او دَ تیلو په شان دَده په هډوکیو کښ
۱۹ هغه دِ دَ جامي په شان وي چه ور سره
ئي اغوندي
او لکه کمربند چه مدام ئي تر ملا تړي
۲۰ دغه اجر دَي ځما دَ غلیمانو دَ یهوه له
طرف
او دَ هغو چه ځما په خلاف بدي وايي
۲۱ مګر ته اي خداونده الله دَ خپل نوم په
روي ما سره سلوک وکړه
ځکه چه ستا مهرباني ښه ده نو ما
خلاص کړه
۲۲ ځکه چه خوار او محتاج یم
او زړه مِ په کوګل کښ وچاوډ
۲۳ زه دَ سوري په شان یم چه وېډیږي
دَ ملخ په شان شړلي شوي یم

۲۴ زنګنونه مِ له روژي له سببَ سُست
شوي دي
او غوښي مِ له څربښت نه ووتي
۲۵ زه هغوته رسوا شوي یم
هغوي چه راته ګوري - نو سرونه سره
خوځوي
۲۶ اي یهوه ځما الله ما له کومک راکړه
او دَ خپلي مِهربانئ په موافق نجات راکړه
۲۷ تا چه هغوي وپوهیږي چه دغه ستا
لاس دَي
چه تا دغه اي یهوه کړي دي
۲۸ هغوي به لعنت کړي - مګر ته برکت
ورکوي
هرکله چه پورته شي نو شرمنده به شي
مګر ستا بنده به خوښي وکړي
۲۹ ځما آزارونکیو ته دِ دَ شرمندګئ جامي
واغوستلي شي
او هغوي دِ ځان پټ کړي په خپلي
شرمندګئ لکه چه په څادر
۳۰ زه به په خپلي خولي سره دَ یهوه
ثنا ووایم
هو زه به دَ ډیرو په منځ کښ دَده
حمد وکړم
۳۱ ځکه چه دَي به دَ مسکین په ښي لاس
ودریږي

تا چه هغه دَ هغو له لاسَ چه دَ هغه
په ځان باندِ حکم کوِي نجات ورکوِي

## یوسل لسم

مزمور دَ داؤد

۱ یهوه ځما خداوند ته وفرمایل چه ته
م په ښِي لاس کښېنه
تر هغه پورِي چه زه ستا دُښمنان
تر پښو لاندِ کړم
۲ یهوه به ستا دَ قوّت اَمصا له صیحونه
واستوِي
ته دَ خپلو دښمنانو په منځ کښ حکم کوه
۳ ستا قوم به ستا دَ قوّت په ورځ کښ په
خوشحالئ سره ځان قربان کړِي
دَ پاکیزګئ په خوب صورتئ کښ دَ سحر
له رَحِمَ
تاله دَ خپلي ځوانئ شبنم دَي
۴ یهوه قسم وخوړ-او پښیمان به نه شِي
ته به تر ابده پورِي کوهن یي
دَ مَلِک صدق په شان
۵ خداوند به ستا په ښِي لاس
دَ خپل قهر په ورځ کښ بادشاهان
ووهِي
۶ دَ غیر قومونو په منځ کښ به عدالت
وکړِي
هغه به ځایونه له مړو نه ډک کړِي
هغه به په ډیرو وطنونو کښ سرداران
ووهِي
۷ هغه به په لارِي کښ دَ نالي نه وڅښي
دَ دي له سببَ به خپل سر هَسک کاندِ

## یوسل یولسم

۱ اَلحَمدُ لِلّٰهِ
زه به په خپل ټول زړه سره دَ یهوه
شکرګذارِي کوم
دَ راستانو په مجلس کښ او په جماعت
کښ
۲ دَ یهوه کار بزرګ دَي
تلاش کړي شوي له هغو ټولو نه په کښ
خوشحالي کوِي
۳ دَده کار عزّت او شوکت دَي
او دَده صداقت ترابده پورِي قایم
دَي
۴ هغه خپل عجائب کارونه دَ یادګارئ
دپارَ جوړ کړل
یهوه کریم او رحیم دَي
۵ ده هغو ته چه له ده نه ویریږي
خوراک ورکه
خپله وعده به تر اَبَده پورِي یاده
لرِي
۶ ده خپلو خلقو ته دَ خپلو کارونو
زور وربښکاره کړه

هغه له دَ غیر قومونو میراث په ورکولو
کښِ
٧ دَ هغه دَ لاسونو کارونه حق او عدالت
دِي
دَده ټول فرایض یقیني دِي
٨ تر ابده پوري باقي دِي
په حق او په راستئ سره کړِي شوِي دِي
٩ ده خپلو خلقوته فِدیه ورواستوله
ده خپله وعده ترابده پوري فرمایلي ده
دَده نوم قدُّوس او مُهیب دَي
١٠ دَ یهوه ویرهِ دَحکمت شروع دَه
دَ هغو ټولو عقل چه عمل پري کوِي
ښه دَي
دَده مَدح ترابده پوري قایمه دَه

## یوسل دولسم

١ اَلحَمدُ لِلّهِ
مبارک هغه سړي دَي - چه له یهوه
نه ویریږي
چه دَده په حکمونو ډیره خوشحالي کوِي
٢ دَ هغه اولاد به په زمکه کښ قوتناک
وِي
دَ راستانو اولاد به مبارک وِي
٣ دَ هغو په کور کښ به مال او دولت
وِي
او دَ هغه صداقت ترابده پوري
قایم دَی
٤ دَ راستانو دَپاره به په تیاري کښ نوُر
را وخیژوِي
هغه کریم او رحیم او صَدیق دي
٥ نیک دَي هغه سړي چه کرم کوِي او
قرض ورکوِي
هغه به خپله مُقدِّمه په عدالت
کښ پوره کوِي
٦ ځکه چه هغه به هیڅري ونه خوځیږي
دَ صادقانو ذکر به مدام وِي
٧ دَ بدو خبرونو نه به نه ویریږي
دَ هغه زړهِ ټینګ دَي په یهوه باندِ
به تکیه کوِي
٨ دَ هغه زړهِ قراردَي و به نه ویریږي
څو چه هغه خپل مطلب ووِیني په
خپلو دُښمنانو باندِ
٩ هغه ښندلي دِي - هغه غریبانو له
ورکړي دِي
دَده صداقت ترابده پوري دَي
ښکر دَده به په عزّت سره هَسْک کړَي
شي
١٠ شریر به ووِیني او په غُصّه به شي
هغه به په خپلو غاښونو سرهِ ورچیچي
او ویلي به شي
خواهش دَ شریرانو به باطِل شي

## یَوسل دیارلسم

۱ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ
حمد وکړئ اي دَ یهوه بندګانو
دَ یهوه دَ نوم حمد وکړئ
۲ دَ یهوه نوم دِ مبارک وِي
له دي حاله تر ابده پورې
۳ له نمرخاته نه تر پرېواته پورې
دَ یهوه نوم دِ ممدوح وِي
۴ یهوه په ټولو غیرِ قومونو باس دَی
او دَده لوېي په آسمانونو باندِ دَه
۵ څوک دَ یهوه څمونږ الله په شان دي
چه پورته کښنیني
۶ څان حلیم کوي دَ لیدلو دَپارَ
هرڅه چه په آسمانونو او په زمکه کښ دي
۷ دَي مسکین له خاورونه پورته کوِي
او غریب له ډیرانه را پاڅوِي
۸ تاچه هغه له امیرانو سره کښینوِي
بلکه دَخپلو خلقو له امیرانو سره
۹ شنډه ښځه دَکور ساتني دَپارَ اوسوِي
چه دَ هلکانو خوشحاله مورشي
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

## یَوسل څوارلسم

۱ چه اسرائیل له مصره ووت
دَ یعقوب ټبر دَ بیګانه ژبي له خلقو
نه
۲ نو یهُودا دَ هغه مُقَدَّس شه
اسرائیل دَ هغه سَلْطَنَت
۳ دریاب ولید او وتښتیده
اُرْدَن پستنه وشاړه شه
۴ غرونه دَ مِږُونو په شان وټوپیده
او غونډئ دَ ګډورو په شان
۵ اي دریابه په تا څه وشول چه
وتښتیدې ؟
اي اُرْدَنه چه ته پستنه لاړې
۶ اي غرونو ولي دَ مِږُونو په شان و
ټوپ لیدئ
اي غونډیو دَ ګډورو په شان
۷ اي زمکي دَ خداوند په حِضُور ولړزېږه
دَ یعقوب دَ الله په حِضُور
۸ چه کاڼي ئي دَ اوبو په حوض بدل که
ګټي ئي دَ اوبو په چینې

## یَوسل پنځه لسم

۱ نه مونږ ته اي یهوه نه مونږ ته
بلکه خپل نوم ته جلال ورکړه
دَ خپلي مهربانئ او دَ خپلي راستئ
په سبب
۲ ولي دِ غیرِ قومونه وايي
چه اوس دَدوي الله چرته دَي ؟
۳ لیکن څمونږ الله په آسمانونو کښ دَي
ده هرڅه چه وغوښتل هغه ئي وکړل

۴ دَ هغو بُتان دَ سپينو او دَ سرو زرو دِي
دَ بني‌آدمو دَ لاسونو کارِي کړئ دِي
۵ دَ هغو خولې شته دَي - مگر خبرې نه کوِي
سترگې ئې شته دَي - مگر نه وِينِي
۶ غوږونه ئې شته دَي - مگر نه اورِي
پوزې ئې شته دَي - مگر نه بُويوِي
۷ لاسونه ئې شته دَي - مگر نه نِسِي
پښې ئې شته دَي - مگر نه ځِي
له خپله حلقه آواز يستلې نه شِي
۸ هغه څوک چه هغه جوړوِي دَ هغو په شان دِي
هو هر څوک چه پر بانِدِ تکيه کوِي
۹ اي اسرائيلَ په يهوه بانِدِ تکيه کوه
هغه دَ هغوي مددکار او ډال دَي
۱۰ اي دَ هارُون خاندانه په يهوه تکيه وکړئِ
هغه دَ هغوي مددکار او ډال دَي
۱۱ اي له يهوه نه ويريدونکيو په يهوه تکيه وکړئِ
هغه دَ هغوي مددکار او ډال دَي
۱۲ يهوه موږ ياد کړو هغه به برکت راکړِي
دَي به دَ اسرائيل ټبر ته برکت ورکړِي
دَ هارُون ټبر ته به برکت ورکړِي
۱۳ يَهُوَهْ هغو ته چه له ده نه ويريږِي برکت
به‌ورکړِي
هم وړوته هم لويو ته
۱۴ يهوه دِ تاسو زيات کاندِ
تا او ستا اولاد
۱۵ تاسو دَ يهوه مبارک يئِ
چه ده آسمان او زمکه جوړ کړل
۱۶ آسمانونه دَ يهوه آسمانونه دِي
ليکن زمکه ئې بني‌آدمو ته وبخښله
۱۷ مړه دَ ياهُ حمد نه کوِي
او نه هغه ټول چه خاموشئِ ته کوزيدونکي دِي
۱۸ ليکن موږ به له دي وقت نه تر ابده پوري
ياهُ ته مبارک وايُو
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

## يوسل شپاړسم

۱ زه له يهوه سره مينه لرم - ځکه چه ده واوريده
ځما آواز او ځما زاريِ
۲ له دي سبب ئې ماته غوږ ونه‌ګينول
زه به په خپل ټول عمر کښې ده ته فرياد وکړم
۳ دَ مرگ عذابونو گير کړم
او دَ هاديږ سختيو ونيولم
زه په دَرْد او غم کښې گرفتار شوم

۴ پس ما دَ یهوه نُوم واخست
چه اي یهوه عرض لرم ځان ځما خلاص
کړه
۵ یهوه کرِیم او صَدِیق دَي
هو الله ځمونږ رحیم دَي
۶ یهوه دَ مُخلِصانو ساتونکي دَي
چه زه عاجز شوي وم - او ما له ئي نجات
راکه
۷ اي ځما ځانه خپل آرام ته وګرزه
چه یهوه په تا باندِ احسان کړي دَي
۸ تا لهٔ مرګه ځما ځان خلاص که
سترګي مِ له اوښکو
او پښي مِ له ښوئېدلو
۹ زه به دَ یهوه حِضُور ته وګرزم
دَ ژوندیو په زمکو کښ
۱۰ زه ایمان لرونکم له دي سببَ نه خبره
کوم
زه به ډیري سختئ کښ وم
۱۱ ما په خپلي جلتئِ سره وویل
چه ټول بنيِ آدم دروغ ویونکي دِي
۱۲ زه به یهوه ته څه ورکړم
دَ هغو ټولو په عوض کښ ځما دَپارَ
۱۳ زه به دَ نجات پیاله واخلم
او دَ یهوه نُوم به وبولم
۱۴ زه به دَ یهوه نذرونه اداکړم
هو دَ هغو ټولو خلقو په مخ کښ
۱۵ دَ یهوه په نظر کښ ګران بها دي
دَ ده دَ تقويٰ دارانو مرګ
۱۶ اي یهوه حَقِیقتًا زه ستا بنده یم
زه ستا بنده یم ستا دَ وینځي ځوي یم
تا ځما بندونه پرانتل
۱۷ زه به ستا حِضُور ته دَ شکرګذارِيِ ذبحِ
ذبح کړم
او دَ یهوه نُوم به وبولم
۱۸ زه به یهوه ته نذرونه اداکړم
هو دَ هغو ټولو خلقو په مخ کښ
۱۹ دَ یهوه دَ کور په دربارونو کښ
ستا په منځ کښ اي اورشلیمَ
اَلحَمْدُ لِلّٰهِ

## یوسل اووه لسم

۱ اي ټولو قومونو دَ یهوه حمد کوئِ
اي ټولو اُمَتُونو دَده تعریف وکړئِ
۲ ځکه چه مِهربانيِ دَده په مونږ باندِ
ډیره دَه
او راستيِ دَ یهوه تر ابده پوري دَه
اَلحَمْدُ لِلّٰهِ

## یوسل اَتْلَسَمْ

۱ د یهوه شکر کوئِ ځکه چه دي نیک
دَي
او مِهربانيِ دَده تر ابده پوري دَه

۲ اسرائیل دِ ووایِي
چه مِهربانِي دَده ترابده پوري دَه
۳ دَ هارُون ټبَر دِ ووایِي
چه مِهربانِي دَده ترابده پوري دَه
۴ ټول ویریدونکي دَ یهوه دِ ووایِي
چه مِهربانِي دَده ترابده پوري دَه
۵ ما په تنګسیا کښ یاه وباله
یاه ما له ځواب راکه په فراخ ځاي کښ
۶ یهوه ځما په لوري دَي-زه نه ویریږم
انسان ځما څه کولي شِي.
۷ یهوه ځما په طرف په هغو کښ چه ځما
مددګار دِي
نوزه به هغه چه کینه راسره کوي
ووینم
۸ په یهوه توکّل کول ښه دِي
نه په سړي
۹ په یهوه توکّل کول ښه دِي
له تکیه کولو نه په امیرانو
۱۰ زه ټولو قومونو ګیر کړم
زه به په نُوم دَ یهوه ټول پري کړم
۱۱ هغوي زه راګیر کړم-هو هغوي راګیر کړم
زه به په نُوم دَ یهوه هغوي پري کړم
۱۲ هغو دَ کبِینه دَ مچو په شان ګیر کړم
هغوي دَ اغزیو دَ اورپه شان بَل شول
زه به دَ یهوه په نوم هغوي پري کړم

۱۳ زه ئي په زورسره ټیل وهلم چه پریوزم
لیکن یهوه ځما مدد وکه
۱۴ یاه ځما قوّت او ځما غزل دَي
او هغه ځما نجات شوي دَي
۱۵ دَ صادقانو په خیمه کښ دَ خوښئ او
دَ نجات آوازدَي
ښَي لاس دَ یهوه دَ قوّت کارکوِي
۱۶ ښَي لاس دَ یهوه هَسک شوي دَي
ښَي لاس دَ یهوه دَ قوّت کارکوِي
۱۷ زه به مړ نه شم بلکه ژوندي به اوسم
او دَ یهوه کارونه به بیان کړم
۱۸ یاه ماته ډیره تنبیه راکړه
لیکن مرګ ته ئي ونه سپارلم
۱۹ دَ صداقت دروازي ځما دپاره وازي
کړئِ
زه به هغوته ننوزم
دَ یاه ثنا به ووایم
۲۰ دَ یهوه دروازه دا دَه
صادقان به ورننوزي
۲۱ زه به تاته شکر وکړم
ځکه چه تا ما له ځواب راکړي دَي
او ته ځما نجات شولي
۲۲ هغه کاڼي چه مِعمارانو رَدکه
دَ کُنډ سرشوي دَي
۲۳ دا کار دَ یهوه دَي

خمونږ په سترګو کښې عجب دي
۲۴ دا هغه ورځ ده چه يهوه پيدا کړي ده
مونږ به په دې کښې ښادي کوو او
خوشحاله به يو
۲۵ اي يهوه عرض لرو نجات راکړه
۲۶ مبارک دې وي هغه چه د يهوه په نوم
راځي
مونږ تاسو ته د يهوه له کوره مبارکبادي
درکړي ده
۲۷ يهوه الله دی او هغه په مونږ باندې رڼا
ځلوي
ذبيحه په پړيو په ښکرو پوري د قربانګاه
وتړئ
۲۸ خما الله ته يې او زه به ستا ثنا وکړم
ته خما الله يې زه به تا هسک کړم
۲۹ د يهوه شکرګذاري کوئ - ځکه چه هغه
نيک دی
ځکه چه مهرباني د ده ترابده پوري ده

## يوسل نولسم

اَلِف ﻻ ا

۱ مبارک هغوي دي چه په لاري کښې
کامل دي
چه د يهوه په توريت کښې تلونکي دي
۲ مبارک هغه دي چه د ده شاهدئ
ساتي
چه په ټول زړه سره ئې لټوي
۳ هو هغوي بدي نه کوي
د ده په لارو ځي
۴ تا حکم کړي دی د خپلو مسئلو
چه مونږ ئې بالکل ومنو
۵ اي کاشکې چه لاري خما قايمې شولې
تا چه ستا فرمانو نه ومنو
۶ پس زه به شرمنده نه شم
هرکله چه زه ستا ټولو حکمونو ته نګاه
کوم
۷ تا ته به د زړه په راستئ سره شکر کوم
چه زه ستا صادق عدالتونه زده کړم
۸ زه به ستا فرمانونه ومنم
ته مې بالکل مه پرېږده

بيت ٮ ب

۹ ځوان به څرنګه خپلې لاري پاکې کړي ؟
ستا د کلام په موافق سره به ځاي له
راوړونه ؛
۱۰ ته مې په ټول زړه سره ولټولي
زه ستا له حکمونو نه لارخطا نه کړم
۱۱ ما ستا وعده په خپل زړه کښې پټه
ايښې ده
هسې نه چه ستا خطا وکړم ،
۱۲ اي يهوه ته مبارک يې

خپل فرمانونه ما ته رازده کړه
۱۳ ما په خپلو شونډو سره بیان کړل
ستا دَ خولې ټول عدالتونه
۱۴ زه ستا دَ شاهدیو په لارې کښې داسې
خوشحاله یم
لکه چه په ټول دولت سره
۱۵ زه به ستا په مَسَلو کښې فکر وکړم
او ستا په طریقو به نګاه وکړم
۱۶ ستا په فرمانونو کښې به خوښ اوسم
او ستا کلام به هیر نه کړم

ג گِمَل گ

۱۷ له خپل بنده سره احسان وکړه - تا چه
زه ژوندې شم
نو زه به ستا کلام ومنم
۱۸ سترګې ځما پرانزه چه ووینم
عجائب ستا له توریتَ
۱۹ زه په زمکه کښې مسافر یم
ته خپل حکمونه له ما نه مه پټوه .
۲۰ ځما ځان په شوق پرې کیږي
هر وقت ستا دَ عدالتونو دَ پارَ
۲۱ تا هغه مَغرُوران چه مَلعُونان دي
ترټلې دي
چه ستا له حکمونو نه ګمراه کیږي
۲۲ ته له ما نه ملامتیا او سپکاوي دفعه کړه
ځکه چه ما ستا شاهدۍ ساتلې دي
۲۳ امیران هم سره کښیناستل او ځما په
خلاف ئې خبرې وکړې
مګر ستا بنده ستا په فرمانونو کښې
فکر وکه
۲۴ ستا شاهدۍ ځما خوښۍ دي
او ځما صلاح کونکي دي

ד دالث د

۲۵ ځما ځان په خاورو پورې نښتې دَی
ته مې په موافق دَ خپل کلام ژوندې کړه
۲۶ ما خپلې لارې ظاهرې کړې او تا ما ته
ځواب راکه
خپل فرمانونه را زده کړه
۲۷ دَ خپلو مَسَلو په لار مې پوه کړه
او زه به ستا په عجائبو کارونو باندې فکر
وکړم
۲۸ ځان ځما له غمه ویلې کیږي
دَ خپل کلام په موافق ما قایم کړه
۲۹ دَ دروغو لار له ما نه لرې کړه
او په مِهربانۍ سره خپل توریت ما ته
وبخښه
۳۰ ما دَ وفادارۍ لار خوښه کړه
ستا عدالتونه مې په خپل مخ کښې کیښول
۳۱ زه ستا په شاهدیو پورې نښتې یم

او اي يهوه ما مه شرمنده کوه

۳۲ زه به ستا دَ حکمونو په لاري وزغلم
چه ته ځما زړه کشاده کړي

ה هي هـ

۳۳ اي يهوه ما ته دَ خپلو فرمانونو لار را
وښيه
او زه به هغه ترابده پوري وساتم
۳۴ ما ته فهم راکړه چه زه ستا توريت
وساتم
هو زه به هغه په خپل ټول زړه سره
ومنم
۳۵ ما دَ خپلو حکمونو په لاري روان کړه
ځکه چه ځما خوښي په هغي کښي ده
۳۶ ځما زړه دَ خپلو شاهديو په لوري
مايل کړه
او نه دَ طمعي په لوري
۳۷ ځما سترګي راو ګرزوه چه په بُطلان
نظر ونه کړي
او په خپلي لاري کښي ما ژوندي کړه
۳۸ خپله وعده دَ خپل بنده دَ پاره قايمه
کړه
چه هغه له تا ويريږي
۳۹ هغه ملامتيا چه زه ورنه ويريږم
له ما نه يې وګرزوه

چه ستا عدالتونه ښه دي
۴۰ ګوره ستا دَ مسئلو مشتاق يم
په خپل صداقت کښي ما ژوندي کړه

ו واو و

۴۱ ستا مهرباني دِ ما ته راشي اي يهوه
نجات ستا دَ وعدي په موافق
۴۲ تا چه زه هغوته چه ما ملامت کوي
ځواب ورکړم
ځکه چه زه ستا په کلام تکيه کوم
۴۳ دَ رښتيني کلام مِ له خولي نه بالکل مه
جدا کوه
ځکه چه ستا په عدالتونو ځما اعتماد دي
۴۴ نو زه به ستا توريت هر وقت منم
ترابدالآباد پوري
۴۵ او زه به په اُرت ځاي ګرزم
ځکه چه مسائل ستا مِ ولټول
۴۶ زه به دَ بادشاهانو په مخ کښي هم ستا
دَ شاهديو ذکر وکړم
او شرمنده به نه شم
۴۷ ستا په حکمونو کښي به خوښي وکړم
چه ما غوره کړه
۴۸ زه به ستا دَ حکمونو په لوري چه زه
له هغو سره مينه لرم لاس پورته کړم
او زه به ستا په فرمانونو کښي فکر وکړم

ז زين ز

۴۹ یاد کړه هغه کلام خپل بنده ته
چه زه دې پر باندې امیدوار کړم
۵۰ دغه خما په غم کښ تسلي ده
ځکه چه ستا وعدې ما ته ژوند را
بخښلي دی
۵۱ مغرورانو په ما پوري ډېري ټوقې وکړي
مګر زه ستا له توریت ونه ګرزیدم
۵۲ اي یهوه ما ستا پخوانی عدالتونه په
یاد کړل
نو تسلي مې وموندله
۵۳ حیرانئ نیولي یم
د هغو شریرانو په سبب چه ستا
توریت ئې پرېښي دی
۵۴ ستا فرمانونه خما غزلونه شوي دي
خما د مسافرئ په کور کښ
۵۵ اي یهوه ما په شپه کښ ستا نوم یاد که
او ستا توریت مې منلی دی
۵۶ دوسره خما وُو
چه ما ستا مسائل وساتل

ח خيث خ

۵۷ یهوه خما برخه دی
ما وویل چه زه به ستا خبرې منم
۵۸ ما په ټول زړه سره ستا د مهرباني
وغوښتله
ته د خپلي وعدي په موافق رحم را
باندې وکړه
۵۹ ما په خپلو لارو غور وکه
او ستا د شاهدیو په لوري مې پښې
را وګرزولي
۶۰ ما جلدي وکړه او ډیل مې ونه که
او ستا د حکمونو د منلو د پاره
۶۱ د شریرانو پړي را نه چاپېره شول
مګر ما ستا توریت هیر نه که
۶۲ زه به نیمه شپه پورته شم ستا د
شکر کولو د پاره
ستا د صداقت د عدالتونو په سبب
۶۳ زه د هغو ټولو ملګري یم چه له تا نه
وېرېږي
او د هغو چه ستا مسائل مني
۶۴ اي یهوه زمکه ستا له مهربانئ نه
اباده ده
ما ته خپل فرمانونه را زده کړه

ט طيث ط

۶۵ له خپله بنده سره ښېګړه وکړه
اي یهوه موافق د خپل کلامه
۶۶ ما ته ښه خوند او معرفت را زده کړه

ځکه چه ما ستا په حکمونو ايمان راوړي دَي
۶۷ دَ مُصِيبَت له گرفتارکيدلو نه مِ لار خطا کړه
ليکن اوس به ستا وعده ومنم
۶۸ ته نيک او نيکي کونکَي يي
ما ته خپل فرمانونه رازده کړه
۶۹ مغرورانو په ما پوري دروغ تړلي دِي
زه به په ټول زړه سره ستا مَسائل وساتم
۷۰ د هغو زړه دَ وازدو په شان څورب شوَي دَي
ليکن زه ستا په توريت خوښي کوم
۷۱ ځما دَپارَ ښه دَه چه ربړيدلي وَيَ
چه ستا فرمانونه زده کړم
۷۲ ستا دَ خولي توريت ما له ښه دَي
له زرګونو سرو او سپينو زرو نه

י يُوذ ي

۷۳ ستا لاسونو زه پيدا کړم او قايم ئي کړم
ما ته فهم راکړه چه ستا حکمونه زده کړم
۷۴ هغوي چه له تا نه ويريږي ما به وويني
او خوشحاله به شِي
ځکه چه ستا کلام ته اميدوار يم
۷۵ اي يهوه زه پوهيږم چه عدالتونه ستا صادق دِي
او په وفادارَي کښي دِ زه ذليل کړم
۷۶ ستا مِهرباني دِ ځما دَ تسلَّي سبب شِي
موافق دَ خپلي وعدي چه دَ خپل بنده سره دِ کړي وه
۷۷ ستا رحمتونه دِ په ما باندِ راشي چه ژوندَي شم
ځکه چه ستا توريت ځما خوښي دَه
۷۸ مغرور دِ شرمنده شِي
ځکه چه په روغَ سره ئي ځما حق وهلي دَي
ليکن زه به ستا په مَسائلو فکر وکړم
۷۹ ويريدونکي ستا دِ ځما په لوري راوګرزي
او هغوي به ستا شاهدي وپيژني
۸۰ ځما زړه دِ ستا په فرمانونو کښي کامل وِي
تا چه زه شرمنده نه شم

כ کاف ک

۸۱ ځان ځما ستا دَ نجات دَپارَ بي هوش دَي
او ستا کلام ته اميدوار يم
۸۲ ستا دَ وعدي په انتظار کښي مِ سترګي رندي شوي

چه دا وايم چه کله به مِ تسلّي وکړي؟
۸۳ زه دَ ژيږ په شان په لوګي کښ يم
لیکن ستا فرمانونه مِ هير نه کړل
۸۴ ستا دَ بنده ورځي څو دِي ؟
ته به کله دَ هغو عدالت وکړي چه ما ربړوِي
۸۵ مغرورانو څما دَپارَ دوغل وکنوَلْ
چه ستا دَ توريت موافق نه دِي
۸۶ ستا ټول حکمونه وفادار دِي
هغوي په دروغه سره ما ربړوِي ته مِ مدد وکړه
۸۷ هغو زه په زمکه کښ نژدې وخوړلم
لیکن ما ستا مَسائل ترک نه کړل
۸۸ دَ خپلي مِهربانيِ په شان ما ژوندَي کړه
چه زه ستا دَ خولي شاهدِي وساتم

ל لامد ل

۸۹ تر ابده پوري اي يهوه
په آسمانونو باندِ ستا کلام دَي
۹۰ وفاداري ستا پُشت په پُشت دَه
تا زمکه قائمه کړه او هغه ودريدله
۹۱ او ستا دَ عدالتونو په موافق ترورځي پوري ودريږي
ځکه چه ټول څيزونه ستا بندګان دِي
۹۲ که ستا توريت څما خوشحالي شوي نه وَي
نو زه به په خپل مُصِيبت کښ هلاک شوَي ومَ
۹۳ زه به ستا مَسائل ترابده پوري هير نه کړم
ځکه چه په هغو سره دِ زه ژوندَي کړم
۹۴ زه ستا يم ته نجات راکړه
ځکه چه ما ستا مَسائل ولټول
۹۵ شريران څما دَ هلاکولو په انتظار کښ دِي
لیکن زه ستا په شاهديو غور کوم
۹۶ ما دَ ټول کماليت حد ليدلَي دَي،
لیکن حکم ستا ډير کشاده دَي

מ میم م

۹۷ زه ستا له توريت سره څومره مينه لرم
ټوله ورځ مِ په هغه کښ فکر دَي
۹۸ ستا حکمونو زه زيات هوښيار کړم له خپلو دښمنانو نه
ځکه چه هغوي مدام له ما سره دِي
۹۹ زه له خپلو ټولو اُستاذانو نه زياته پوهه لرم
ځکه چه ستا شاهدِي څما فکر دَي
۱۰۰ زه له سپين ږيرو نه زيات پوهيږم
ځکه چه ما ستا مَسائل ساتلي دِي
۱۰۱ ما له هري بدي لاري نه خپل

قدمونه وساتل
دَدي دَپارَ چه زه ستا کلام ومنم
۱۰۲ زه ستا دَ عدالتونو ګرزيدلي نه يم
ځکه چه تا ما ته راوښيل
۱۰۳ ستا وعدي څما په تالو باندي څنګه خوږي لګيږي
بلکه له ګبينه هم زياتي څما په خولي کښ
۱۰۴ ستا دَ مسٔالو په وسيلي زه پوه شوم
له دي سببَ زه له هري بدي طريقي سره ګينه لرم

د نون ن

۱۰۵ ستا کلام څما دَ قدمونو دَپارَ ډيوه دَي
او څما دَ لاري رڼا دَي
۱۰۶ ما قسم خوړلي دَي او قايم مِ که
چه زه به ستا دَ صداقت عدالتونه ومنم
۱۰۷ زه ډير ربړ کړي شوي يم
اي يهوه دَ خپل کلام په موافق مِ ژوندي کړه
۱۰۸ دَ خولي دَ نفل قرباني مِ قبوله کړه اي يهوه
او خپل عدالتونه را زده کړه
۱۰۹ څما ځان مدام څما په ورغوي کښ دَي
نو ستا توريت مِ هم هير نه که
۱۱۰ شريرانو څما دَپارَ دام ايښي دَي
ليکن زه ستا له مسٔالو نه ګمراه نه شوم
۱۱۱ زه ستا شاهدي ستا ابدي ميراث ګڼم
څما دَ زړه دَپاره خوښئ دي
۱۱۲ ما خپل زړه ستا دَ فرمانونو کولو دَپارَ مائل که
تر ابده تر آخره پوري

ه صامک ص

۱۱۳ دَ دوو زړو سړيو سره ګينه کوم
مګر ستا له توريتَ مينه لرم
۱۱۴ ته څما دَ پټيدلو ځاي او ډال يي
زه ستا کلام ته اميد لرم
۱۱۵ اي بدکارانو له ما نه لري شئ
چه زه دَ خپل الله حکمونه ساتم
۱۱۶ دَ خپلي وعدي په موافق مِ سنبال کړه چه ژوندي اوسم
او له خپله اميده شرمنده نه شم
۱۱۷ ما راپورته کړه چه نجات ومومم
او زه به مدام ستا دَ فرمانونو آدب کوم
۱۱۸ ته هغه ټول سپک ګڼړي چه ستا له فرمانونو نه ګمراه ګرزي

ځکه چه دَ هغو حيله دروغ ده
۱۱۹ تا ټول شريران دَ زمکي دَ خيري په شان لري کړل
نو له دي سببَ زه ستا شاهدو سره مينه لرم
۱۲۰ زما غوښه ستا له ويري نه لړزيږي
زه ستا له عدالتونو نه ويريږم

لا عين ع

۱۲۱ ما عدالت او صداقت کړي دي
ما هغو ته چه ظلم را باندي کوي مه سپاره
۱۲۲ دَ خپل بنده ضامن شه دَ نيکئِ دَپارَ
مُتکبِران دِ په ما ظلم و نه کړي
۱۲۳ زما سترګي ستا دَ نجات دَپارَ ړندي شوي
او ستا دَ صادقي وعدي دَپارَ
۱۲۴ له خپل بنده سره په موافق دَ خپلي مهربانئِ کار وکړه
او خپل فرمانونه را زده کړه
۱۲۵ زه ستا بنده يم ما ته فهم راکړه
چه ستا شاهدئِ وپيژنم
۱۲۶ اي يهوه دَ کار کولو وقت دي
ځکه چه توريت ستا ئي مات که
۱۲۷ له دي سببَ زه ستا حکمونه عزيز ګڼم
له سرو زرو هو له کُره سرو زرو نه
۱۲۸ له دي سببَ زه ستا ټول مَسايل له ټولو خبرو په باب کښ راست ګڼم
او له هري دروغژني طريقي سره کينه لرم

ه ني ف

۱۲۹ ستا شاهدئِ عجائبي دِي
ځکه چه زما ځان هغه ساتي
۱۳۰ ستا دَ خبرو پرانتل رڼا ورکوي
ساده ډلانو ته فهم ورکوي
۱۳۱ ما خپله خوله وازه کړه اسويلَي مِ وکه
ځکه چه زه ستا دَ حکمونو مشتاق يمَ
۱۳۲ په ما توجه وکړه او په ما مِهربانئِ وکړه
لکه چه حق دَي دَ هغو دَپارَ چه ستا په نوم مِينه کوي
۱۳۳ په خپلي وعدي سره قدمونه زما سم کړه
او هيڅ بدي دِ په ما باندِ غالبَ نه شي
۱۳۴ دَ بني آدمو له ظلمَ مِ فديه ورکړه
چه زه ستا مَسائل ومنم
۱۳۵ خپل مخ په خپل بنده باندِ وځلوه
او ما ته خپل فرمانونه رازده کړه
۱۳۶ زما له سترګو دَ اوبو والي بهيږي
ځکه چه خلق ستا توريت نه مني

لا تصادي ص

۱۳۷ اي يهوه ته صادق يي

او عدالتونه ستا راست دِي
١٣٨ تا خپلي شاهديُِ په راستيُِ کښې فرمايلي
دِي
او په ډيري وفاداريُِ کښې
١٣٩ زه خپل غيرت نيولي يم
ځکه چه ځما دښمنانو ستا خبري هيرې
کړي
١٤٠ ستا وعده ډيره کَرَه دَه
له دې سببَه ستا بنده له هغو سره
مينه لري
١٤١ زه ووړوکي او حقير يم
ليکن ستا مسائل نه هيروم
١٤٢ ستا صداقت ابدي صداقت دَي
او ستا توريت حق دَى
١٤٣ مُصيبت او آفت زه نيولي يم
ليکن ستا حکمونه ځما خواهش دِي
١٤٤ ستا شاهديُِ ترابده پوري صادقي
دِي
ما ته فهم راکړه چه زه ژوندي شم

ק قاف ق

١٤٥ ما په خپل ټول زړه سره ناري ووهلي
اي يهوه ما له ځواب راکړه
زه ستا فرمانونه ساتم
١٤٦ ما تا ته ناري وکړي نه نجات راکړه
نو زه به ستا شاهديُِ ومنم
١٤٧ ما له صحره وړاندِ فرياد وکه
ما ستا په خبرو باندِ باور وکه
١٤٨ ځما سترګي په پهرونو باندِ وړاندِ شوي
تاچه زه ستا په وعدي فکر وکړم
١٤٩ دَ خپلي مِهربانيُِ په موافق ځما خبري
واوره
ما ژوندي کړه اي يهوه دَ خپلو عدالتونو
په موافق
١٥٠ هغوي چه په شرارت پسي ځي رانږدې
شول
هغوي ستا له توريتَ لري دِي
١٥١ اي يهوه ته نږدي يي
او ستا ټول حکمونه رښتني دِي
١٥٢ ما له قديمه ستا دَ شاهديو په باب
معلوم کړل
چه تا دَ هغوي بنياد ترابده پوري لګولي
دَي

ר ريش ر

١٥٣ ځما په مُصيبَت باندِ نظر وکړه او ما
خلاص کړه
ځکه چه زه ستا توريت هير نه کړم
١٥٤ ته ځما مُقَدِّمه وکړه او شُفعَ مِ کړه
دَ خپلي وعدي په موافق مِ ژوندي کړه
١٥٥ لَه شريرانو نه نجات لري دَي

ځکه چه ستا فرمانونه نه لټوِي
۱۵۶ اي يهوه ستا رحمتونه ډير دِي
ما دَ خپلو عدالتونو په موافق ژوندي کړه
۱۵۷ هغوي چه ما تنګوِي او ځما دښمنان دِي ډير دِي
ليکن زه ستا له شاهديو نه په ډډه نه شوم
۱۵۸ ما فريبيان وليدل او له هغو نه مِې کرکه وکړه
ځکه چه هغوي ستا وعده نه ساتله
۱۵۹ ګوره چه زه ستا مَسَله څنګه محبوبَ ګڼڼم
اي يهوه دَ خپلي مِهربانئِ په موافق ما ژوندي کړه
۱۶۰ ستا دَ کلام مُاحصَل رښتِيَ دي
او ستا ټول عدالتونه ترابده پوري صادق دِي

ש شين ش

۱۶۱ بي سبَبَ سردارانو په ما باندِ ظلم وکه
مګر ځما زړه ستا له خبرو نه په ويره کښې دَي
۱۶۲ زه ستا په وعده خوشحال يمِ
دَ هغه په شان چه ډير لُوټ بيامومِي
۱۶۳ زه له دروغو سره کِينه ګوم او مکروه ئِ ګڼڼم
مګر ستا په توريت باندِ مِينه کوم
۱۶۴ اووه ځله په ورځ کښې ستا حمد کوم
ستا دَ صادق عدالتونو په سببَ
۱۶۵ ستا دَ توريت په کوونکيو ډيره سلامتِي ده
هغوي دَ تيندک خوړلو باعث نه دِي
۱۶۶ اي يهوه زه ستا دَ نجات اميدوارِ يم
او ستا په حکمونو مِ عمل وکه
۱۶۷ ځما ځان ستا شاهديِ وساتلي
او زه په هغو باندِ بيحده مِينه کوم
۱۶۸ ما ستا مَسَائل او ستا شاهديِ و ساتلي
ځکه چه ځما ټولي لاري ستا دَ وړاندِ دِي

ת تاؤ ت

۱۶۹ اي يهوه ځما فرياد دِ ستا په حِضُور کښې ورسِي
دَ خپل کلام په موافق ما ته فهم راکړه
۱۷۰ ځما زاريِ دِ ستا په حِضُور کښې راشِي
او دَ خپلي وعدي په موافق ما له خلاصِي راکړه
۱۷۱ چه ځما شونډي ستا حمد بيان کړِي
ځکه چه ته ما ته خپل فرمانونه را زده کوي

١٧٢ ځما ژبه بِه ستا دَ وعدي ذکر وکړي
ځکه چه ستا ټول حکمونه صادق دِي
١٧٣ ستا لاس دِ ځما دَ کومک دَپارَ تيار شي
ځکه چه ما ستا مَسائل اختيار کړي دِي
١٧٤ اي يهوه زه ستا دَ نجات مشتاق يم
او ستا توريت ځما خوښي دَه
١٧٥ ځان ځما دِ ژوندي وِي او ستا حمد به کوِي
او ستا عدالتونه دِ ځما مدد وکړِي
١٧٦ زه دَ ورکي شوي گډي په شان ورک شوم- دَخپل بنده تلاش وکړه
ځکه چه زه ستا حکمونه هير نه کړم

## يَوسل شلم

دَ پوړو غزل

١ ما په خپلي تنکسيا کښې يهوه ته ناره وکړه
او ده خواب راکه
٢ اي يهوه ځما ځان له دروغژنو شنډو نه خلاص کړه
او له فريبئ ژبي نه
٣ تا ته به څه درکړي شي- او تا له به څه وکړي شي
اي فريبي ژبي
٤ دَ پهلوان دَ تيره غشي
دَ رَتَم دَ سکروټو سره
٥ هيْ په ما چه په مِشک کښې مسافري کوم
او دَ قيدار په تنبوانو کښې اوسم
٦ ځما ځان تر ډيري مُدي پوري اوسيدلي دَي
له هغه سړي چه له صُلحي سره کينه لري
٧ زه صُلحکار يم
مگر هغه وقت چه زه خبري کوم نو هغوي دَ جنگ دَپارَ دِي

## يَوسل يَوويشتم

دَ پوړو غزل

١ زه خپلي سترگي دَ غرونو په لوري پورته کوم
له کومه به ځما مدد راشي ؟
٢ ځما مدد له يهوه نه دَي
چه آسمان او زمکي ئي جوړ کړل
٣ هغه به ستا پښي ښوئيدلو ته ور نه کړي
ستا حافِظ به ووده نه شي
٤ گوره دَ بني اسرائيلو حافِظ
نه به ځملي او نه به خوب وکړي
٥ يهوه ستا حافِظ دَي
يهوه ستا په ښي لاس ستا سوري دَي
٦ نمر به په ورځ کښې تا نه وهي

او نه سپوږمۍ په شپه کښې
۷ يَهُوَه به تا له هرې بدۍ نه محفوظ
کړي
هغه به ستا ځان محفوظ کړي
۸ يهوه به ستا وتل ننوتل محفوظ کړي
له اوس تر ابده پورې

## يوسل دوه ويشتم

دَ پورته غزل - دَ داؤد
۱ زه خوشحال وم چه هغوي راته ويل
چه راځئ چه دَ يهوه کور ته لاړ شُو
۲ خمونږ پښې ودرېږي
ستا په دروازو دَننه اي اورشليمَ
۳ اي اورشليمَ ته جوړ شوې يې
دَ ښهر په شان چه ټول پيوسته دي
۴ چه هلته فرقې پورته ځيږي - هو دَ
ياه فرقې
دَ اِسرائيل دَپارَ عَهَد
دَ يهوه دَ نُوم دَ شکرگذارۍ کولو
دَپارَ
۵ ځکه چه هلته دَ عدالت تختونه
ايښې دِي
دَ داؤد دَ ټبر تختونه
۶ دَ اورشليم دَ سلامتۍ دَپارَ سوال
وکړئ
هغوي چه له تا سره مينه لري به
امن دِ وِي
۷ ستا په ځلورو ديوالونو کښې دِ سلامتيا
وِي
او ستا په محلونو کښې دِ امن او خوښي
وِي
۸ زه دَ خپلو وروڼو او دَ ملګرو دَپارَ
اوس به ووايم په تا بانډ اَلسَّلاَمُ عَلَيْکُمُ
۹ په سبب دَ کور دَ يهوه خمونږ الله
زه ستا خيريت غواړم

## يوسل درويشتم

دَ پورته غزل
۱ زه خپلې سترګې ستا په لورې پورته
کوم
اي ته چه په آسمانونو کښې کښيني
۲ گوره لکه چه دَ مريونو سترګې دَ خپل
خاوند لاس ته گورې
لکه چه دَ وينځې سترګې دَ خپلې ميرمنې
لاس ته
هم هسې خما سترګې دَ يهوه دَ خپل
الله په لورې دِي
تر هغه پورې چه دي په مونږ فضل
وکړي
۳ په مونږ فضل وکړه اي يهوه په مونږ
فضل وکړه
ځکه چه دَ ډېر سپکوالي نه ماړه شولو

۴ ځمونږ ځان زیات موړ شه
د آسوده حالو له مسخرو کولو نه
او د مغرورانو د سپکاوي نه

# یوسل څلورویشتم

د پونږو غزل - د داؤد

۱ که ځمونږ په لوري نه وي
اسرائیل دې اوس ووايي
۲ که یهوه ځمونږ په لوري نه وي
چه خلق په مونږ پورته کیدل
۳ نو هغوي به مونږ نغړدلي وُو
هر کله چه د هغو غضب ځمونږ په ضد
بل شوي وه
۴ نو هغه وقت به مونږ اوبو غرق
کړي وُو
سیلاب به ځمونږ په ځان باندې تیر
شوي وه
۵ هغه وقت به کبرجني اوبه ځمونږ په
ځان باندې تیري شوي وي
۶ مبارک دې وي یهوه
چه مونږ ئي د هغو د غاښونو لُوټ
ته ور نه کړو
۷ ځمونږ ځان د چڼچڼي په شان د ښکاري
له دامَ خلاص شه
دام پریکړي شه - او مونږ تښ ووتلو
۸ ځمونږ مددګاري د یهوه په نُوم ده
چه آسمانونه او زمکي ئي پیدا کړي دي

# یوسل پنځه ویشتم

د پونږو - غزل

۱ هغوي چه په یهوه ئي تکیه کړي ده
د صیحون د غره په شان دي چه نه خوځیږي
او تر ابده پوري اوسي
۲ لکه چه په اورشلیم غرونه چاپیره
شوي دي
هم دغه شان یهوه د خپل اُمت نه
چاپیره دَي
له اوسه تر ابده پوري
۳ د شرارت اَمضا به په قلاره پري نږدي
د صادقانو په بخره باندې
هسي نه وي چه صادقان د بدکاري
په لوري لاسونه اوږده کړي
۴ اي یهوه د ښو سره ښیګړه وکړه
او چه په خپلو زړونو کښي راست دي
۵ مګر هغه چه د خپلو کږو لارو په
لوري ځي
یهوه به هغوي له بدکارانو سره
روان کړي
په اسرائیل باندې دي سلام وي

# یوسل شپږویشتم

د پونږو غزل

۱ کوم وقت چه یهوه د صیحون قید

راوګرزاوه
مونږ دَ هغو په شان وُو لکه چه خوب
وِينِي
٢ نو خُمونږ خولي له خندا نه ډکي شوي
او ژبي مو دَ ښادئِ له سرود نه
پس غير قومونو په خپل منځ کښ سره
وويل
چه يهوه دَدوي دَپارَ لوي کارونه کړِي
دِي
٣ يهوه له مونږ سره لوي کارونه کړِي
دِي
او مونږ خوشحاله يُو
۴ اي يهوه خُمونږ قيد راوګرزوه
لکه ولي په سهيل کښ
۵ هغوي چه په اوښکو سره ئي کرِي-
په خوښئِ سره به ئي لَو کړِي
۶ اګرچه هغه په خپلي لاري ژړيدلي
ځِي او تخم ئي واخست
هغه به په خوښي سره راشِي خپلي
دلِٔ ځان سره اخستي

## يَو سل اوه وِيشتم

دَ يَوْنږو غزل دَ سُليمان
١ که چري يهوه کور جوړ نه کړِي
نو دَ جوړونکيو محنت بي‌فائدي دَي
که يهوه دَ ښهر حفاظت ونه کړِي
دَ څوکيدار شوکيره عبث ده
٢ تاسو ته دَ سحرخيزئِ هيڅ فائده نشته
او دومره ناوقته اوده کيږئِ
اوَ دَ محنت ډوډئِ خورئِ
هم دغه شان به خپل محبوب ته خوب
ورکړِي
٣ ګوره ځامن دَ يهوه ميراث دَي
او دَ رَحِم ميوه اجر دَي
۴ لکه دَ پهلوان په لاس کښ غشِي
داسي دِي دَ ځوانئِ ځامن
۵ مبارک هغه دَي چه خپل ترکش
ئي له هغو نه ډک دَي
هغوي به شرمنده نه شِي
چه له دښمنانو سره په دروازه کښ
خبري کوِي

## يَو سل اته وِيشتم

دَ يَوْنږو غزل
١ مبارک دي هرکس چه له يهوه
نه ويريږي
چه دَده په لارو ځِي
٢ خکه چه ته به دَ خپلو لاسونو ګټه
خوري
ته به مبارک يِي او تا سره به ښه
وشِي
٣ ستا ښځه به دَ ميوه دار تاک په شان

شِي
ستا ذَكور په دننه
ستا ځامن به دَ ښوون دَ بوټي په شان
شِي- ستا دَ دسترخوان نه ګير چاپېر
۴ ګوره دغه شان هغه سړي به مبارک
وِي
چه له يهوه نه ويرېږي
۵ يهوه به له صيحونَ تا ته برکت درکړي
او ته به ټول عمر دَ اورشليم نيکي وِيني
۶ هو ته به دَ خپلو ځامنو ځامن ووِيني
په اسرائيل باندِ دِ سلام وِي

## يَو سل نه وِيشتم

دَ پورته غزل
۱ دَ هلکتوب له وختَ هغو ډېر ځله
ربړولي يم
اسرائيل دِ اوس ووائي
۲ دَ هلکتوب له وقتَ هغو ډېر ربړولي يم
مګر په ما باندِ ئي توان ونه شه
۳ قُلبه کونکيو څما په شا باندِ يَوي ووهلي
او خپل کِيلُونه ئي اوږده کړل
۴ يهوه صادق دَي
ده دَ شريرانو پړي پريکړل
۵ هغه دِ شرمنده شِي- او پسته دِ
وګرزولي شِي
هغه ټول چه دَ صيحون سره کينه لري
۶ او دَ کوټو دَ واښو په شان دِ شِي
چه پخوا دَ وکښلو وچ شِي
۷ چه لوګړي له هغو نه سوټي ډک نه کړي
او هغه چه ګېډۍ تړي خپله غيږ
۸ او نه تيري ډونکي وائي
چه دَ يهوه برکت دِ په تاسو وِي
مونږ دَ يهوه په نوم تاسو ته برکت
درکوو

## يَو سلْ ديرشم

دَ پورته غزل
۱ ما له ژورِي نه ناري وکړي تا ته اي يهوه
۲ اي خداوندَ آواز څما واوره
ستا غوږونه دِ متوجّه شِي
څما دَ زاريو په آواز
۳ اي يهوه که چرِيَ ته دَ ګناهونو حساب
اخلي
نو څوک به اي يهوه ودريدلي شِي
۴ مګر تا سره عفوه دَه
چه له تا نه ووېرېدَي شِي
۵ زه دَ يهوه په انتظار يم
څما ځان انتظار کوِي
او دَ ده په کلام کښِ څما اميد دَي
۶ څما ځان دَ خداوند دَپارَ منتظر دَي
له څوکيدارانو نه دَ صبا دَپارَ
هو څوکيداران دَ صبا دَپارَ

۷ اې اسرائيل په يهوه باندې اميد وکړه
ځکه چه له يهوه سره مهرباني ده
او ده ځخه فديه ډېره ده
۸ او هغه به د اسرائيل فديه ورکړي
له ټولو ګناهونو خپلو نه

## يو سل يو دېرشم

د پورته غزل د داؤد

۱ اې خداونده زما زړه مغرور نه دی
او نه زما نظر اوچت دی
او زه په لويو کارونو کښې دخل نه کوم
او نه په لويو کارونو چه زما د پاره عجايب
دي
۲ په يقين سره مې خپل ځان په قرار
او په آرام کړی دی
د هغه هلک په شان چه د مور له
تي پرېکړي وي
هو زما زړه په ما باندې لکه له تي
پرېکړي هلک
۳ اې اسرائيل په يهوه اميد وکړه
له اوس تر ابده پورې

## يو سل دو دېرشم

د پورته غزل

۱ اې يهوه د داؤد د پاره ياد کړه
د هغه ټولې سختۍ
۲ چه ده څنګه په يهوه قسم وکه
او د يعقوب د قادر ته يې نذر ومانه
۳ زه به ضرور د خپلې استوګنې په تمبو
کښې داخل نه شم
او نه به په خپل کټ باندې وخيژم
۴ نه به خوب خپلو سترګو ته راپرېږدم
او نه به خوب خپلو بڼو ته
۵ تر هغه پورې چه مقام د يهوه بيا نه
مومم
او مسکن د يعقوب د القادر د پاره
۶ ګوره مونږ د هغه خبر په افراته کښې
واورېده
د بڼ په پټيو کښې مو وموند ،
۷ مونږ به د هغه مسکنونو ته ورشو
مونږ به د هغه د قدمونو په کرسۍ
سجده وکړو
۸ پورته شه اې يهوه خپل آرامګاه ته
ته او د خپل قوت صندوق
۹ ستا کوهنانو ته دې صداقت واغوستلي
شي
او ستا تقوی داران دې له خوشۍ نه
ناري ووهي
۱۰ د خپل بنده داؤد د پاره
د خپل مسيح نه مخ مه ګرزوه
۱۱ يهوه په راستۍ سره داؤد ته قسم وکه
هغه به تر و نه ګرزي

زه به ستا دَ تن له میوي نه ستا په
تخت باندِ کښینوم
۱۲ او که ستا ځامن ځما وعدي وساتي
او ځما شاهدیِ چه زه ئي هغو ته
وښیم
نو د هغو ځامن به هم ستا په تخت
باندِ ترابده پوري ناست وي
۱۳ ځکه چه یهوه صیحون غوره که
خوښ ئي که دَ خپلي استوګني دَپارَ
۱۴ دا ځما دَ آرام ابدي مکان دَي
په ده کښ به اوسم ځکه چه ما
خوښ که
۱۵ ضرور زه به دَ هغه روزيِ ته برکت
ورکړم
دَ هغه مِسکینان به په ډوډيِ ماړه
کړم
۱۶ دَ هغه کوهنانو ته به دَ نجات لباس
ور واغوندوم
او دَ هغه تقویٰداران به له خوشحاليِ
ناري ووهي
۱۷ هلته به زه دَ داؤد ښکر وتوکوم
ما دَ خپل مسیح دَپارَ ډِیوه تباره
یِنبي دَه
۱۸ شرمندګي به دَ هغه دښمنانو ته
واغوندوم

لیکن په ده باندِ به دَده تاج ځلیږي

## یَو سل دري دیرشم

دَ یوَزرو غزل دَ داؤد

۱ ګوره څه ښه او څه ښایسته دَه
چه ورونړه یوځاي سره استوګنه کوِي
۲ دا دَ هغو ګران تیلو په شان په سر
دِي
چه په ږِیره را توي شول
هو دَ هارون په ږِیره
چه دَ جامو په لَمَنَه ئي توي شول
۳ دَ حرمون دَ شبنم په شان
چه دَ صیحون په غرونو باندِ اوري
ځکه چه په هغه ځاي یهوه دا برکت
وفرمایه
زندګاني تر اَبَدَالآباد

## یَو سل څلور دیرشم

دَ یوَزرو غزل

۱ ګوريِ یهوه ته مبارک ووایئ
اي تاسو ټولو بندګانو دَ یهوه
چه دَ یهوه په کور کښ په شپه ودریږئ
۲ مَقدِس ته خپل لاسونه پورته کړئ
او یهوه ته مبارک ووایئ
۳ یهوه دِ له صیحونَ تاته برکت درکړي
هو هغه چه دَ آسمانونو او دَ زمکي
پیدا کونکي دَي

## یَو سل پنځه دېرشم

۱ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ
دَ یهوه دَ نُوم حمد کوئِ
اي دَ یهوه بندګانو ذده حمد کوئِ
۲ اي تاسو چه دَ یهوه په کور کښ ودرېږئ
څمونږ دَ الله دَ کور په غولو کښ
۳ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ځکه چه یهوه نیک دَي
دَده دَ نُوم حمد وغږوئ ځکه ښائسته
دَي
۴ ځکه چه یاهُ یعقوب دَ خپل ځان دَپارَ
غوره که
او اسرائیل ئي د خپلي خاصي خزاني دَپارَ
۵ ځکه چه زه پوهېږم چه یهوه لوي دَي
او چه څمونږ خداوند له ټولو خدایانو
نه اوچت دَي
۶ هرڅه چه یهوه وغوښتل هغه ئي
وکړل
په آسمانونو او په زمکو په دریابونو
او په ټولو ژورو کښ
۷ دي دَ زمکي له حدونو نه لوي راپورته
کوِي
دَ باران دَپارَ برېښنا جوړوي
باد له خپلو خزانو نه راوباسي
۸ چه دَ مصر وړومبي پیدا شوئِ هم وهل
هم دَ انسان هم دَ حیوان
۹ هغه نښي او عجائبات ستا په منځ کښ
ولېږل اي مِصرَ
په فرعون او په ټولو خدمتګارانو ئي
۱۰ ده ډېر قومونه مړه کړل
او زبردست بادشاهان ئي قتل کړل
۱۱ سیهون بادشاه دَ اُموریانو
او عُوج بادشاه دَ باشان
ټول بادشاهات دَ کِنْعان
۱۲ او دَ هغو زمکه ئي دَ میراث دَپارَ ورکړه
میراث خپل قوم اسرائیل ته
۱۳ اي یهوه ستا نوم تر ابده پوري دَي
اي یهوه ستا یادګاري به پُشت په
پُشت وي
۱۴ ځکه چه یهوه به دَ خپلو خلقو انصاف
وکړي
او دَ خپلو بندګانو دَپارَ به پښېماني
وکړي
۱۵ دَ غیر قومونو بُتونه دَ سپینو او دَ سرو
زرو دِي
کار دَ لاسونو دَ انسان
۱۶ دَ هغو خولي شته مګر خبري کولي نشِي
دَ هغو سترګي شته مګر لیدلي نشِي
۱۷ دَ هغو غوږونه شته مګر اوریدلي
نه شِي
او په خولو کښ ئي سا نشته

۱۸ هغوي چه دَ هغو جوړونکي دِي - هم
دَ هغو په شان دِي
هو هر يَو چه په هغو توکّل کوِي
۱۹ اي دَ اسرائيل تبرَ يهوه ته مبارک
وايئِ
اي دَ هارُون تبر يهوه ته مبارک
وايئِ
۲۰ اي دَ لاوِي تبرَ تاسو يهوه ته
مبارک وايئِ
چه له يهوه نه ويرېږئِ يهوه ته
مبارک ووايئِ
۲۱ يهوه دِ له صيهون مبارک وِي
چه په اورشليم کښې اوسيږي
اَلحَمدُ لِلّهِ

## يَوسل شپږ ديرشم

۱ دَ يهوه شکر کوئِ ځکه چه دي ښه دي
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي ترابدَ پوري ده
۲ دَ خدايانو دَ الله شکر کويِ
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي تر ابده
پوري ده
۳ دَ خداوندانو دَ خداوند شکر کويِ
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي ترابده
پوري ده
۴ دَ هغه چه عجائب کارونه کوِي
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي تر ابده
پوري ده
۵ دَ هغه چه په دانائِي سره ئي آسمانونه
جوړ کړل
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي ترابده
پوري دَه
۶ دَ هغه چه زمکه ئي په اوبو باندِ وغوړوله
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي ترابده
پوري دَه
۷ دَ هغه چه لوي نُورونه ئي پيدا کړل
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي ترابده
پوري ده
۸ نمر دَ ورځي دَ بادشاهِئ کولو دَپارَ
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي تر ابده
پوري ده
۹ سپوږمِئ او ستورِي دَ شپي دَ بادشاهِئ
کولو دَپارَ
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي تر ابدَ
پوري دَه
۱۰ دَ هغه چه دَ مِصر ورنبي پيدا شوِي
ئي ووهل
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي ترابدَ پوري
ده
۱۱ او اسرائيل ئي دَ هغو له منځ راوويست
ځکه چه دَ هغه مِهربانِي تر ابده
پوري ده

۱۲ دَ قوي لاس او له غځولو مټو سره
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۱۳ دَ هغه چه بحرِ قُلزم ئي دوه ټکړې که
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۱۴ او اسرائيل ئي دَ ده په منځ کښې پورې بيئل
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۱۵ او فرعون ئي دَ هغه دَلښکر سره په بحرِ قُلزم کښې وغرځانده
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابده پورې ده

۱۶ دَ هغه چه په بيابان کښې ئي خپلو خلقو ته لار وښيله
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۱۷ دَ هغه چه لوي بادشاهان ئي قتل کړل
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۱۸ او نامدار بادشاهان ئي هلاک کړل
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۱۹ سيهون بادشاه دَ اموريانو
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۲۰ او عوج بادشاه دَ باشان
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابده پورې ده

۲۱ او دَ هغو زمکه ئي ميراث ورکړه
ښکله چه دَ هغه مِهرباني ترابده پورې ده

۲۲ هو ميراث اسرائيل خپل بنده له
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابده پورې ده

۲۳ دَ هغه چه موږ ئي په عاجزئ کښې ياد کړو
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۲۴ او موږ ئي له خپلو دښمنانو نه خلاص کړو
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابدَ پورې ده

۲۵ هغه ټول بشر ته روزي ورکوي
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابده پورې ده

۲۶ دَ آسمان دَ الله شکر کوئ
ښکه چه دَ هغه مِهرباني ترابده پورې ده

## یوسل اوه دیرشم

۱ دَ بابل دَ سیندونو په غاړه
هلته موږ کښیناستو هم موږ وژړل
چه موږ صیحون یاد که
۲ په ونو دَولو دَ هغه په منځ کښې
خپل ستارونه مو ځوړند کړل
۳ ځکه چه هلته هغوي چه موږ ئي
په بند بیولي وُو د غزل غوښتي
او هغوي چه ځموږ خرابونکي وُو له
موږ نه ئي خوښي وغوښتله و ئي
ویل
چه دَ صیحون له غزلو نه ځموږ دَ پاره
یو غزل وغږوئ
۴ موږ به څنګه دَ یهوه سرود وغږوُو
په پردئ زمکه کښې
۵ اي اورشلیمَ که زه تا هیر کړم
نو ځما ښي لاس دِ هنر هیر کړي
۶ ژبه مِ دِ دَ خولي په تالو پوري ونښلي
که زه تا یاد نه کړم
که زه اورشلیم نه خوښوم
له خپلي اَوَلي خوښئ نه زیات
۷ اي یهوه بني ادوم له یاد کړه
ورځ دَ اورشلیم
چه ویل ئي ونړوه ونړوه دَ هغه دَ بنیادَ
پوري
۸ اي دَ بابل لوري تاچه خرابه ولي شي
مبارک به هغه شي چه تا له بدله
درکړي
لکه چه تا له موږ سره وکړه
۹ مبارک به هغه وي چه ستا هلکان
پورته کړي او و ئي ولي
په کاڼو

## یوسل اته دیرشم

دَ داود مزمور

۱ په ټول زړه سره به زه ستا شکر وکړم
دَ خدایانو په حضور به ستا حمد
وغږوم
۲ ستا دَ پاک هیکل په لوري به سجده
وکړم
ځکه چه تا خپل کلام له خپله ټوله
نُومه زیات که
۳ هغه ورځ چه ته مِ وبللي نو ما له دِ
ځواب راکه
ځکه چه تا ځان ځما په خپل توّت
سره دلاسه که
۴ اي یهوه ټول بادشاهان دَ زمکي به
ستا شکر وکړي
ځکه چه دوي ستا دَ خولي خبري اوریدلي
دي
۵ هو هغوي به دَ یهوه دَ لارو سرود

وغږوي
ځکه چه د يهوه جلال لوئې دې
۶ او که يهوه لوي دې - مګر په عاجزانو
باندې نظر کوي .
مګر مغروران له لرې نه پېژني
۷ هرڅو چه زه د آفتونو په منځ کښې
ګرزم - ته به م ژوندي کړې
ته به م د خپلو دښمنانو په قهر
باندې لاس اوږد کړې
او په خپل ښي لاس سره به نجات
راکړې
۸ يهوه به بټول ځما د پاره پوره کاندي
اې يهوه ستا مهرباني تر ابده پورې ده
د خپلو لاسونو کارونه مه ترک کړه

## يوسل نه دېرشم

سردار د سرودګرو د پاره - مزمور د داؤد

۱ اې يهوه تا زه ولټولم او ودې پېژاندلم
۲ ته ځما ناسته او ولاړه پېژنې
ته ځما په انديښنه له لرې نه پوهېږې
۳ ته ځما تلل او څملاستل څېړوې
او ته ځما په ټولو لارو خبر يې
۴ ځکه چه يوه خبره ځما په ژبه باندې نشته
کوره ته اې يهوه په دې بالکل پوهېږې
۵ ته وړاندې او ورستو په ما ګرزېدلې
او تا يې په ما باندې لاس ايښې دې
۶ داسې علم ځما د پاره ډېر عجب دې
اوچت دې هغه ته رسېدلې نه شم
۷ زه به ستا له روحَ چرته لاړ شم
او ستا له مخ به چرته وتښتم
۸ که آسمان ته وخېژم نو ته هلته يې
که زه خپل کټ په هاوېه کښې کېږدم
نو ته هلته يې
۹ که د صبا وزر واخلم
او د درياب په آخر کښې اوسم
۱۰ نو هلته به هم ستا لاس ماته لار
راوښيي
او ستا ښي لاس به م سنبال کړي
۱۱ که زه ووايم چه تياره به م ضرور
پټ کړي
او روښنائي به ځما په ګېرچاپېر شپه
شي
۱۲ نو تياره له تا نه نه پټوي
مګر شپه د ورځې په شان ځلېږي
تياره او رڼا ستا په نزد برابر دي
۱۳ ځکه چه تا ځما لړمون جوړ که
تا زه د مور په رحم کښې ودلي يم
۱۴ زه به ستا شکر وکړم
ځکه چه زه ډېر هيبتناک او په عجيبه
طور پيدا کړې يم
ستا کارونه عجائب دي

به هغه خبره خان ځما نه پوهيږي
۱۵ چه زه جوړيدم له تانه پټ شوي نه وم
چه زه به پټه کښې جوړ شوي وم
او دَ زمکې په تلې کښې جوړيدلم
۱۶ ستا سترګو ځما بې ترتيبَ ماده وليدله
او ستا په کتاب کښې ټول اندامونه ځما
لِيکلې شوي دِي
چه ورځ په ورځ جوړيده
چه لاتراوسَ پورې يو له دغو نه نه وه
۱۷ اي الله ستا انديښني ځما په حق کښې
څومره کرَه دِي
او دَ هغو جمع څومره ډيره ده
۱۸ که زه يُ په شمار کړم نو له شګي نه
زياتي دِي
چه زه بيدار شم نو بيا هم له تا سره يم
۱۹ اي الله ته به په يقين سره شريران
قتل کړې
بس اي خونيانو له ما نه لرې شئِ
۲۰ ځکه چه هغوي ستا په باب کښې په
شرارت سره خبرې کوي
او ستا دُښمنان عبث ستا په خلاف
پورته کيږي
۲۱ اي يهوه زه له هغو سره کينه نه کوم-
چه له تا سره کينه کوي څه ؟
او زهٔ له هغو چه له تا سره په مخالفت
پورته کيږي غمګين نه يم څه ؟
۲۲ زه له هغو سره سخت کينه لرم
زه هغوي په خپلو دښمنانو کښې ګڼم
۲۳ اي الله ما ولټوه او ځما زړه وپيژنه
ما وآزمايه او ځما انديښني وپيژنه
۲۴ او ګوره چه په ما کښې دَ شرارت لارَ شته
او ما په ابدِي لارې کښې بوزه

## يوَ سل څلويښتم

سردارِ دَ سرودګرو دَ پارَ - مزمُور دَ داؤد

۱ اي يهوه ما له شرير سړي نه خلاص کړه
او له ظالم سړي نه مِ وساته
۲ چه په خپلو زړونو کښې بدِي ګڼوي
هره ورځ دَ جنګونو دَ پارَ جمع کيږي
۳ خپلې ژبې دَ مارانو په شان تيرې کوي
تر ژبو لاندې يُ دَ منګور زهر دِي (سلاه
۴ اي يهوه دَ شرير له لاسَ مِ محفوظ کړه
له ظالم سړي نه مِ وساته
چه دوي ځما دَ قدمونو دَ ټيل وهلو
په فکر کښې دِي
۵ مغرورانو ځما دَ پارَ دام پټ کړې دي-
او پړي
په لارې کښې يُ ځما دَ پارَ جال بښيږدې
لومه يُ ځما دَ پارَ ايښي دَه (سلاه
۶ ما يهوه ته وويل چه ته ځما الله يې
اي يهوه ځما دَ مناجات آواز واوره

۷ یهوه خداوند ځما دَ نجات توّتَ
تا دَ جنګ په ورځ کښ ځما سر پټ که
۸ اي یهوه دَ شریر خواهش مه پوره کوه
دَ هغه بد تدبیر مه پوره کوه - هسي
نه چه دَي سر پورته کړي (سلاه
۹ سر دَ هغو چه زه ئي راګیر کړم
بدِي دَ خپلو شونډو ئي پټ کړي
۱۰ په هغو دِ سکروټي ولوېږي
په اور کښ دِ وغورزولي شي
په سیلابونو کښ چه بیا پورته نه شي
۱۱ بد ویونکي سړي به په زمکه باندِ قایم
پاتي نه شي
شرارت به ظالم سړي ښکار کړي دَ
هغه دَ پرزولو دَپارَ
۱۲ ځما یقین دَي چه یهوه به دَ مظلومانو
انصاف وکړي
او دَ حاجتمندانو حق
۱۳ په یقین سره به صادقان ستا دَ نوُمَ
شکرګذارِي وکړي
راستان به ستا په حِضُور کښ سکونت وکړي

## یوَ سل یو څلویښتم

مزمُور دَ داؤد

۱ اي یهوه ما تا ته ناري ووهلي ځما
دَپارَ جلتي وکړه
هغه وقت چه زه تا ته ناري وهم نو
ځما آواز واوره
۲ ځما دُعا دِ ستا په حِضُور کښ دَ خوشبوئي
دَ بخُور په شان قایمه شي
پورته کیدل ځما دَ لاسو دِ دَ ماښام دَ
قربانئ په شان شي
۳ اي یهوه ځما په خولې باندِ څوکئ ودروه
ځما دَ شونډو دروازي وساته
۴ ځما زړه هیڅ بدي خبري ته مه ګرزوه
چه دَ شرارت په کارونو کښ مشغول شي
سړو سره چه بدِي کوي
او ما دَ هغِو دَ مزه دارو خوراک خوړو ته
مه پریږده
۵ صادق مِ دِ ووهي هغه به مِهرباني وِي
او هغه دِ تنبیه راکړي هغه به په سر
باندِ دَ تیلو په شان وِي
سر مِ دِ انکار نه کوي
ځکه چه دَ هغوي په شرارت کښ به مِ
دُعا برابر شي
۶ دَ هغو حاکمان دَ کَټ په کندو کښ غورزولي
دَي
نو هغوي به ځما خبري واورِي ځکه چه
خوږي ذِي
۷ لکه چه سړي یوي کوِي او زمکه څیرِي
دَ قبر په خولې کښ ځموږ هډوکي پراګنده
شول

٨ ليکن اي يهوه خداوندَ ځما سترګي
ستا په لوري دِي
ځما توکل په تا بانديَ دَي - ته ځما ځان
مه شړه
٩ ما له هغه دامه چه هغوي ځما دَپارَ
ايښي دَي محفوظ کړه
او دَ مُفسِدانو له جالونو نه
١٠ شريران دِ په خپلو دامونوکښ پريوزي
چه زه تير شم

## يوسل دوڅلويښتم

مسکيل دَداؤد په هغه وقت چه په غارکښ وه دُعا

١ زه په خپل آواز سره زارِي کوم يهوه ته
په خپل آواز سره يهوه ته منّت کوم
٢ زه به خپل فرياد دَده په حضُور کښ
وکړم
او دَ ده په وړاندِ به خپل غم بيان کړم
٣ هغه وقت چه ځما روح خپه وه نو تا
ځما لار وپيژندله
په کومه لار چه زه تيريږم هغوي ځما
دَپارَ په پټه سره دام ايښي دَي
٤ ما په خپل ښي لاس وکتل اوګوره څوک
چه هيڅوک نشته چه ما وپيژني
پناه مِ پاتي نه شوه - او هيڅوک ځما دَ
ځان دَپارَ فکرنه کوي
٥ اي يهوه ما تا ته فرياد وکه
و مِ ويل چه ته ځما پناه يي
ځما بخره دَ ژوندانه په زمکه
٦ ځما فرياد واوره ځکه چه زه ډيرذليل
شوي يم
ما له هغو نه چه رانپسي شوي دِي
خلاص کړه
ځکه چه هغه له ما نه زورآوردِي
٧ ځان ځما له بندِيخانې نه خلاص کړه
تاچه ستا دَ نُوم شکر وکړم
صادقان به مِ ګير کړي
ځکه چه ته به په ما احسان وکړي

## يوسل دري څلويښتم

مزمُور دَداؤد

١ اي يهوه ځما دُعا واوره
زارِي ځما ونغوره
په خپلي وفادارئِ سره ځواب راکړه او په
خپل صداقت کښ
٢ او خپل بنده له ځان سره عدالت ته
مه راوله
ځکه چه ستا په نظرکښ به هيڅ ژوندي
سړي صادق و نه ګڼلي شي
٣ ځکه چه دښمن ځما ځان وڅړاوه
ژوند ځما ئي په خاورو کښ پايمال
کړي دَي
هغه زه وتيولم په تياره ځايونوکښ

دَ هغو په شان چه وړاندِ مړه شوِي دِي
۴ ځکه روح ځما په ما کښ پریشان شوِي دَي
زړه مِ په کوګل کښ خراب شوِي دَي
۵ زه وړومبيِ ورځي يادَوم
زه ستا په ټولو کارونو فکر کوم
او ستا دَ لاسونو په کار غور کوم
۶ خپل لاسونه به ستا په لوري هسک کړم
ځان ځما دَ وچي زمکي په شان تږي
دَي (سلاه
۷ اي يهوه زر ځما واوره - ځکه چه روح
ځما تمامیږي
خپل مخ له ما نه مه پټوه
هسي نه چه دَ هغو په شان شم چه
دوغل ته کوزیږي
۸ ما ته دَ صبا په وقت دَ خپلي مِهربانئِ
آواز واوروه
ځکه چه ځما تکيه په تا ده
هغه لار چه پرِ باندِ تلل په کار دِي
را وئِ ښیه
ځکه چه زه خپل ځان ستا په لوري پورته
کوم
۹ اي يهوه ما له خپلو دُښمنانو نه خلاص
کړه
زه تا ته درښیم چه مِ پټ کړيِ
۱۰ ما ته خپل خواهش رازده کړه ځکه چه
ته ځما الله يي
ستا نيک روح مِ دِ دَ راستيِ زمکي له ورولي
۱۱ اي يهوه ما دَ خپل نُوم په روي ژوندَي
کړه
دَ خپل صداقت په روي مِ له مُصیبتَ
خلاص کړه
۱۲ او په خپلي مِهربانئِ سره ځما دښمنان
فنا کړه
او هغه ټول چه ځما ځان آزاروِي
نابود کړه
ځکه چه زهِ ستا بنده يم

## يو سل څلور څلویښتم

مزمور دَ داؤد

۱ مبارک دِ وِي يهوه ځما کَټ
چه ځما لاسونو ته قتل کول ښيي
او ځما ګوتو ته جنګ کول
۲ ځما مِهربانئِي او قلا
ځما اوچت برج - او ځما خلاصونکيَ
ځما ډال - او هغه چه زه تَوَکل پرِکوم
چه ځما قوم تر ما لاندِ کوِي
۳ اي يهوه انسان څه دَي چه ته ئِي
یاد کړي ؟
يا بنيِ آدم چه ته ئِي په خیال کښ راولي
۴ انسان خوَ عبث دَي
ورځي ئِي دَ سورِي په شان تیریږي

۵ اي يهوه خپل آسمانونه راټيټ کړه - او
راکوز شه
غرونو له لاسونه وروړه چه لوګي تړ
پورته شي
۶ بريښنا و بريښوه او هغوي تار په تار کړه
خپل غشي ګذار کړه او هغوي پريشان
کړه
۷ خپل لاس له پاسَ را وغزوه
بچ مِ کړه - او ما له ډيرو اوبو نه خلاص
کړه
دَ بيګانهؤ له لاسَ
۸ څکه چه دَ هغو خولي دروغ وايي
او ښي لاس دَ هغو دَ دروغو ښي لاس دَي
۹ اي الله زه به ستا دَپارَ يو نوي غزل
وغږوم
په لس تاري رباب به ستا مدحه وغږوم
۱۰ هغه دَي چه بادشاهانو ته نجات ورکوي
چه خپل بنده داؤد له زيان کاري
توري نه خلاصوي
۱۱ بچ مِ کړه او خلاص مِ کړه دَ بيګانوَ
له لاسَ
چه خولي ئي عبث وايي
او ښي لاس ئي دَ دروغو ښي لاس دَي
۱۲ تا چه ځمونږ ځامن دَ نهال په شان
شي چه لوي شوي دِي په خپلي ځوانئ کښ

او ځمونږ لونړه دَ کټ دَ کانړو په شان
چه دَ محل په اندازه سره کنودلي شوي وِي
۱۳ او انبارونه ځمونږ ډک وِي - چه رنګارنګ
څيزونه په کښ پيدا کيږي
ځمونږ ګډي ځمونږ په ميره کښ په
زرګونو په لکونو لنګي شي
۱۴ چه غوايان ځمونږ ښه بار کړِي شوِي
او نه مات کيدل او نه کوچ کول
او نه وِير ځمونږ په لارو کښ
۱۵ مبارک دَي هغه اُمّت چه په داسي
حال کښ وِي
هو مبارک هغه اُمّت چه الله ئي يهوه دَي

## يوَ سل پنځه څلويښتم

دَ حمد مزمُور دَ داؤد

۱ اي ځما الله اي بادشاه زه به تاله تعريف
وکړم
او زه به تر ابد الآبادَ پوري ستا نوُم
ته مبارک ووايم
۲ زه به هره ورځ تا ته مبارک وايم
او زه به تر ابد الآبادَ پوري ستا دَ نوُم
مدحه کوم
۳ يهوه لوي دَي - او نهايت دَ حمد لايق دَي
او دَ هغه لوئي له تحقيق کولو نه بهر دَه
۴ يَوه پيرئِ به تر بلي پيرئِ پوري ستا دَ کارونو
مدحَ کوي

او ستا دَ قدرتونو بيان به کوي
۵ ستا دَ جلال دَ لوئي دَبدَبي
او ستا په عجائب کارونو به غور کوم
۶ او خلق به ستا دَ هيبتناک قدرت
خبري وکړي
او زه به ستا دَ لوئي بيان وکړم
۷ هغوي به ستا دَ لوي احسان دَ يادګارئ
ذکر وکړي
او ستا دَ صداقت سرود به ووايي
۸ يهوه کريم او رحيم دَي
په خفګئ کښ سُست او ډيرهِ مهرباني
کوي
۹ يهوه دَ ټولو دَپارَ ښه دَي
او دَده رحمتونه دَده په ټولو کارونو
باندِ دي
۱۰ اي يهوه ستا ټول کارونه ستا شکر
کوي
او ستا تقوئ داران به تا ته مبارک
وايي
۱۱ ستا بادشاهتَ به دَ جلال خبري وکړي
او ستا دَ قدرت بيان به وکړي
۱۲ تا چه په بنيآدمو باندِ ستا قدرتونه
ظاهر کړي
او دَده دَ بادشاهي دَ دبدبي جلال
۱۳ ستا بادشاهت ابدي بادشاهت دَي

او ستا حکومت پُښت په پُښت
۱۴ يهوه هغه ټول چه پريوزي سنبالوي
او هغه ټول چه کاږه شوي دِي پورته
کوي ئي
۱۵ دَ ټولو سترګي تا ته انتظار کوي
او ته په وقت هغوته روزي ورکوي
۱۶ ته خپل لاس پرانزي
او دَ هر يو جاندار خواهش پوره کوي
۱۷ يهوه په خپلو ټولو لارو کښ صادق
دَي
او په خپلو ټولو کارونو کښ مهربان
دَي
۱۸ يهوه هغو ټولو ته چه ده ته ناري
وهي نژدي دَي
هغو ټولو ته چه په رښتنئِ سره ناري
ورته وهي
۱۹ دي دَ هغو ټولو مراد چه له ده نه
ويريږي پوره کوي
دي به هم دَ هغو ټولو زاري واورِي
او نجات به ورکړي
۲۰ يهوه هغه ټول چه له ده سره مينه
لري ساتي
مګر ټول شريران به نابود کاندي
۲۱ خما خوله به دَ يهوه دَ حمد خبري
وکړي

او تول بشر به دَده دَ پاک نُوم ستر
ابدالآبادَ شکر وکاندِ

## یوَسل شپږ څلویښتم

۱ اَلحَمدُ لِلّٰهِ
اي زما ځانه دَ یهوه حمد کوه
۲ زه هغه پورې چه زه ژوندي يم دَ يهوه
حمد به کوم
څو چه ژوندي يم الله ته به مدحه غږوم
۳ په اميرانو باندِ تکيه مه کوئِ
او نه په بني آدم چه په کښ نجات نشته
۴ دَ هغه ساه خېژي او بيا خپلو خاورو
ته ورگرزي
۵ مبارک هغه دَي چه دَ يعقوب الله ئې
مددگار دَي
چه تَوکّل ئې په يهوه خپل الله دَي
۶ چه آسمانونه او زمکې ئې پيدا کړل
درياب او هرڅه چه په هغه کښ دِي
چه رښتيني ئې ترابدَ پوري ساتي
۷ چه دَ مظلومانو دَپارَ عدالت کوِي
چه وږيو ته ډوډئِ ورکوِي
يهوه قيديان خلاصوِي
۸ يهوه دَ ړندو سترگې پرانزي
يهوه هغه چه کاږه شوي دِي سم ودروِي
يهوه په صادقانو مِينه کوي
۹ يهوه دَ مسافرانو حفاظت کوِي
هغه يتيمان او کونډې سنبالوِي
ليکن دَ شريرانو لار لوړه ژوره کوِي
۱۰ يهوه به ترابدَ پورې سلطنت کوِي
ستا الله اي صيحونَ پښت په پښت
اَلحَمدُ لِلّٰهِ

## يوَسل اوه څلويښتم

۱ اَلحَمدُ لِلّٰهِ
ځکه چه زمونږ دَالله مدحه غږول ښه
دِي
ځکه چه ښايسته دَي او حمد کول ئې
ښه دِي
۲ يهوه اورشليم جوړوِي
او دَ اسرائيل تار په تار شوي سره
جمع کوِي
۳ هغه شکسته دلانو ته شَفا ورکوِي
او دَ هغو زخمونه تړي
۴ هغه ستورِي شمارِي
او هريو بيل بيل له نُوم ورکوِي
۵ زمونږ يهوه لوي دَي او په قوّت کښ
بزرگ
دَده فهم بي حَدّ دَی
۶ يهوه حَليم ودروِي
شريران په زمکه باندِ غورزوِي
۷ يهوه ته په شکرگذارئِ سره سرود
وغږوئِ په ستار زمونږ الله ته

۸ چه آسمانونه په اوریځو پټوي
چه دَ زمکي دَپارَ باران تیاروِي
چه په غرونو واښه زرغونوِي
۹ څاوریو ته روزي ورکوِي
چه دَ قاغو بچو ته چه ناري وهِي
۱۰ دَ آس په قوّت نه خوښیږي
دَ سړیو په پښیو راضِي نه دي
۱۱ یهوه له هغو نه چه له ده نه ویریږي
راضِي دي
چه دَ دِه مِهربانيِ ته امیدوار دِي
۱۲ اي اورشلیمَ دَ یهوه حمد کوه
اي صیحونه دَ خپل الله حمد کوه
۱۳ ځکه چه ده ستا دَ دروازو اړمونه
مضبوط کړِي دِي
ستا ځامنو ته چه په تا کښِ دِي برکت
ورکړي دَي
۱۴ او ستا حدونو ته امن ورکوِي
تا په ښو ښو غنمو ډکوِي
۱۵ دَي خپل حکم په زمکه کښ لیږِي
دَده کلام نهایت ګړندي دَي
۱۶ دَي واوره دَ وړيِ په شان ورکوِي
دړلِيِ دَ ایرو په شان غورځوِي
۱۷ واوره دَ ټوټو په شان غورزوِي
څوک دَده دَ یخنيِ دَ وړاندِ ودرېدي
شِي
۱۸ دَي خپل کلام لیږِي او هغوي وِیلي کوِي
خپل باد الوزوِي او اوبه بهیږِي
۱۹ دَي خپل کلام په یعقوب باندِ ظاهروِي
خپل فرمانونه او عدالتونه په اسرائیل
۲۰ ده دَ هیڅ قوم سره داسي سلوک ونه که
دوي دَ هغه عدالتونه ونه پیژندل
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

## یوسل اته څلویښتم

۱ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ
دَ یهوه له آسمانونو نه حمد کوئِ
په اوچتو کښِ دَده حمد کوئِ
۲ اي تاسو دَده فرښتو دَده حمد
کوئِ
اي ټولو دَده لښکرو دَده حمد
کوئِ
۳ اي نمره او اي سپوږمِيِ دَدهِ حمد
کوئِ
اي ټولو روښانو ستوریو تاسو دَده
حمد کوئِ
۴ اي دَ آسمانونو آسمانونو دَده حمد
کوئِ
اي اوبو چه پورته په آسمانونو
کښِ يي
۵ هغوي دِ دَ یهوه دَ نُوم حمد کړِي
ځکه چه ده حکم کړيَ دَي او هغه

پيدا شول
۶ هغوي ئې تر اَبَدالآبادَ پوري قايم کړل
ده يو حکم مقرر که چه تير به تر نه شي
۷ دَ يهوه حمد کوئ له زمکي نه
اي نهنګانو او اي ټولو ژورو
۸ اي اوره او ږلئ واوري او لړي
سخت باده چه دَده حکم په ځاي راوړي
۹ اي غرونو او ټولو غونډيو
ميوه دارو ونو او ټول صنوبرو
۱۰ اي وحشيانو او ټولو څارويو
خزندو او پرندګانو
۱۱ اي بادشاهانو دَ زمکي او ټولو اُمّتونو
اميرانو او ټولو منصفانو دَ زمکي
۱۲ اي ځوانانو او جينکو
سپين ږيرو او هلکانو
۱۳ هغوي دِ دَ يهوه دَ نُوم حمد کوي
ځکه چه يواځي دَده نُوم لوي دَي
لويي دَده پورته په زمکه او په آسمانونو کښ دَه
۱۴ او ده دَ خپلو خلقو ښکر اوچت کړي دَي
حمد دَ خپلو ټولو تقوىٰ دارانو
هو دَ بني اسرائيل قوم چه ده ته نزدي دي
اَلحَمدُ لِلّٰهِ

## يَوسل نه څلوېښتم

۱ اَلحَمدُ لِلّٰهِ
يهوه ته دَ نوي غزل سرود ووهئ
او دَ ده حمد دَ تقوىٰ دارانو په ټولي کښ
۲ اسرائيل دِ په هغه کښ چه پيدا ئې که خوشحالي کوي
دَ صيحون ځامن دِ دَ خپل بادشاه په سبب خوښي وکړي
۳ هغوي دِ دَده دَ نُوم حمد په ګډيدو سره وکړي
هغوي دِ په طَنبَل او په سِتار ده ته مدحه وغږوي
۴ ځکه چه يهوه له خپلو خلقو خوشحاليږي
عاجزانو ته په نجات سره زينت ورکوي
۵ تقوىٰ داران دِ په جلال سره فخر وکړي
هغوي دِ په خپلو کټونو باندِ دَ ښادئ غزل ووايئ
۶ دَ الله صفتونه دِ دَ هغو په خلو کښ وي

او دوه مخه تُوره دِ دَ هغو په لاسونو کښ وي

۷ له غير قومونو نه دَ بدل اخستلو دَپارَ

چه خلقو ته سزا ورکوِي

۸ دَ هغوِي بادشاهان دَ زنځيرونو دَ تړلو دَپارَ

دَ هغو اميران دَ اوسپنو په ځولانو سره

۹ تاچه په هغو باندِ هغه عدالت چه لِيکلي شوي دَي دَ پوره کولو دَپارَ

دَ ټولو تقوىٰ دارانو دا عزّت دَى

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

## يوسل پنځوسم

۱ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

دَ هغه په مَقْدِس کښ دَ الله حمد کوئِ

دَده دَ قدرت په فضا کښ دَده حمد کوئِ

۲ دَده دَ لويو کارونو دَپارَ دَده حمد کوئِ

دَده دَ لويئ دَ کثرت په موافق دَده حمد کوئِ

۳ دَ قرنا په آواز سره دَده حمد کوئِ

او په رباب او په ستار سره دَده حمد کوئِ

۴ په طَنْبَل او په کَهيدو سره دَده حمد کوئِ

په تارونو او په شپيلئِ سره دَده حمد کوئِ

۵ په لوي آوازِي ژرنګوُونِي سره دَده حمد کوئِ

په بنه ژرنګوُونِي غږولو سره دَده حمد کوئِ

۶ هر يو ځيز چه سا لرِي دَ يهوه حمد دِ کوِي

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

# PROVERBS, ECCLESIASTES, SONG OF SONGS.

IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

1895.

# مثالونه

## اول باب

۱ مثالونه دَ سلیمان څوي دَ داؤد بادشاه دَ اسرائیل

۲ دَپاره دَ پیژندلو دَ حکمت او دَ ادب
دَپاره دَ موندلو دَ خبرو دَ فهم
۳ دَپاره دَ حاصلولو دَ نصیحت دَ معرفت
او دَ صداقت او دَ عدل او دَ راستيِ
۴ چه ساده ؤ ته زیرکيِ ورکړِي
او ځوان ته معرفت او تدبیر
۵ چه داناﺉ واورِي نو علم زیات کړِي
او پوهان مصلحتونه کسب کړِي
۶ دَپاره دَ پوهیدلو دَ مثال او دَ رموز
او دَ دانایانو دَ خبرو او دَ دوي
دَ رازونو
۷ دَ خداوند ویره سر دَ معرفت ده
لیکن جاهلان دَ حکمت او دَ ادب
سپکه کوِي
۸ اي زویه دَ خپل پلار نصیحت واوره
او دَ خپلي مور تعلیم مه پریږده
۹ ځکه چه دوي ستا دَ سر دَ نعمت تاج دِي
او ستا دَ غاړِي حمیل
۱۰ اي ځویه که خطاکاران دِ غولوِي
مه ﺉ منه
۱۱ که دوي ووائيِ چه له مونږ سره راځه
چه دَ خون دَپاره پسونې وکړو
او په باطل سره صادق ته پټ شو
۱۲ تا چه ژوندي ﺉ ونغرو لکه دوزخ
او تندرستان لکه کوزیدونکي
په کوهي کښ
۱۳ نو به مونږ ټول قیمتي مالونه ومومو
خپل کورونه به له لوټ نه ډک کړو
۱۴ ته به څمونږ په مینځ کښ خپل هِسک
واچوي
څمونږ دَ ټولو دَپاره به یوه کځوړه وِي
۱۵ اي ځما ځویه له دَغو سره په لارِي مه ځه
دَ دغو له لارِي خپلي پښي منع کړه
۱۶ ځکه چه دَدوي پښي بدیٔ ته زغلِي
او دَ وینو تویولو ته بیړه کوِي

۱۷ څکه چه په باطل سره جال
غوړېدلي دي
دَ چاپرنده په سترګو کښې
۱۸ لیکن هغوي خپلو وینو ته پسوني
کوي
خپلو ځانو ته پټېږي
۱۹ هم هسي لاري دَ هر یوه چه
دَ ګټهي حرص کوي
دا دَ مالدارانو ځان آخلي
۲۰ دانائي له باهره ناري وهي
په لارو کښې خپل آواز ورکوي
۲۱ دَ بازارونو په سرونو کښې بولي
دَ دروازو په مدخلونو کښې
په ښهر کښې خپله خبره ظاهروي
۲۲ وايي چه ترڅو به اي ساده ؤ په
ساده ګۍ مینه کوئ
او ټوقماران به په ټوقو خوشحالیږي
او احمقان به له پوهي سره کینه کوي
۲۳ ځما رټني ته را وجاروزئ
ګورئ زه به خپل روح تاسي ته
نوي کړم
په خپلو خبرو به مو وپوهوم
۲۴ څکه چه ما راوبللئ نو تاسو منع وکړه
او ما خپل لاس اوږد کړ او چا
راته التفات ونه کړ
۲۵ بلکه تاسو ځما ټول مصلحت ترک کړ
او ځما رټنه موخوښه نه کړه
۲۶ نو زه به هم ستاسو په بلا
پوري وخاندم
ستاسي دَ ویري دَ راتلو په وقت
به سخ وکړم
۲۷ هرکله چه په تاسي ویره دَ سیلئ
په شان راشي
او ستاسي بلا دَ ګرد بلا په شان
راشي
هرکله چه په تاسي سختي او تنکسیا راشي
۲۸ نو هغه وقت به مِ وبولي او زه
به ځواب ورنه کړم
هغوي به مِ وقیني ولټوي او وبه
مِ نه مومي
۲۹ څکه چه دوي له پوهي سره کینه وکړه

اودَ خداوند ويره ئي غوره نه کړه
۳۰ خما مصلحت ئي خوښ نه کړه
بلوله رټنه خما ئي سپکه کړه
۳۱ نو دي دَپاره به دوي دَ خپلو
لارو له ميوي نه وخوري
او له خپلو مشورتونو به ماړهٔ شي
۳۲ ځکه چه دَ ساده ؤ ګرزيدنه به
دوي قتل کړي
او دَ جاهلانو راحت به دوي
بيديا کړي
۳۳ ليکن خما اوريدونکي به په امان
اوسي
اودَ شرارت له هيبتَ به آرام ومومي

## دويم باب

۱ اي ځويه که ته خما کلام قبول کړي
او خما حکمونه ځان ځنه کيږدئ کړي
۲ څو چه خپل غوږونه حکمت ته
مايل کړي
او خپل زړه په فهم ولګوي
۳ که ته فهم در وبولي
او خپل آواز فهم ته پورته کړي
۴ که ته هغه ولټوي لکه سپين زر
او دَ پټو خزانو په شان ئي تلاش
وکړي

۵ نو هغه وقت به ته دَ خداوند
په ويري فهم وکړي
او دَ الله پوهه به ومومي
۶ ځکه چه خداوند دانائي ورکوي
او دَده له خولي نه پوهه او فهم وزي
۷ دَ راستمنو دَپاره مددګاري
ذخيره کوي
او دَي دَ کاملو تلونکو دَپاره ډال دَي
۸ چه دَ عدالت فراخي ځيروي
او دَ خپلو پرهيزګارانو لاري ساتي
۹ هغه وقت به ته صداقت او عدالت
وپيژني
او راستي هم هره نيکه لار
۱۰ هرکله چه ستا په زړه کښ دانائي
ننوزي
او لذت دَ پوهي ستا ځان ته
۱۱ نو صلح به به تا نظر کوي
او پوهه به دِ ځير کړي
۱۲ دَپاره دَ خلاصولو ستا دَ لاري
له شرير نه
او له هغه انسان چه په دروغو
خبري کوونکي دَي
۱۳ هغه چه دَ راستئ دَ لارو ترک
کونکي دِي
دَپاره دَ تللو په لاري دَ تياري کښ

۱۴ هغه چه په بدکارئ خوشحاليدونکي دِي
هغه چه دَ شرارت په دروغو
خوښيدونکي دِي
۱۵ هغوي چه لاري ئي کږي دِي
او دوي په خپلو لارو کښ درڼګ
کونکي دِي
۱۶ دَپاره دَ خلاصولو ستا له پردئِ ښځي
له هغي بيګانه ښځي چه په خپلو
خبرو غولول کوِي
۱۷ هغه چه دَ خپلي ځوانئِ يار پريږدِي
او دَ خپل الله عهد هيروِي
۱۸ ځکه چه دَ هغي کور مرګ ته کوزيږي
او لاري ئي رفائمو ته
۱۹ هر څوک چه ورننوزي نه راجاروزِي
او دَ ژوندانه لارو ته نه رسيږي
۲۰ تا چه ته دَ صالحانو په لاري سير وکړي
او دَ رښتينو لاري وساتي
۲۱ ځکه چه راستان به په زمکي کښ
واوسِي
او کاملان به په کښ پاتي شِي
۲۲ ليکن شريران به له زمکي پري کړي
شِي
او نکي کوونکي به ورنه وکښلي شِي

## دريم باب

۱ اي زما ځويه تعليم مِ مه هيروه
بلکه ستا زړه دِ زما حکمونه وساتي
۲ چه دغه به ستا ورځي اوږدي او
کالونه دَ ژوند
او سلامتي به تاته زيات کړي
۳ ته رحمت اوحق پري نه ږدي
دغه دواړه دَ خپلي غاړي غړوندِي کړه
دَ خپل زړه په تختئ ئي وليکه
۴ نو ته به نيک نعمت اوزيرکي مومي
په سترګو دَ الله اودَ سړو کښ
۵ په خپل ټول زړه سره په الله
توکّل وکړه
او په خپل فهم اعتماد مه کوه
۶ هغه به په خپلو ټولو لارو کښ
وپيژنه
او دي به دِ لاري سمي کړي
۷ ته په خپلو سترګو کښ دانا مه شه
له خداوند نه ويريږه او له بدئِ
لري شه
۸ نو دغه به ستا ناف لره شفا
او ستا هډوکو له ماغزه وِي
۹ خداوند ته په خپل مال سره
تعظيم وکړه
او له ټولو ورنبو حاصلو خپلو

۱۰ نو ستا انبارخانې به په موړوالي
ډکې شي
او ستا څرخشتونه به له نوي شرابو
ډکې شي
۱۱ اې زما ځويه دَ خداوند دَ تنبيه
سپکه مه کوه
او دَده له رټني مه ستړي کېږه
۱۲ ځکه چه خداوند هغه چالره چه
محبت ورسره کوي تنبيه ورکوي
لکه پلار هغه ځوي ته چه ورنه خوښ
وي
۱۳ خوشحالي دَه هغه سړي له چه حکمت مومي
او هغه سړي له چه فهم حاصل کړي
۱۴ ځکه چه دَ هغه سوداګري دَ سپينو
زرو له سوداګرۍ بهتره دَه
او ګټه يې له خالصو زرو نه
۱۵ دغه له سرغلرو قيمت بها دَه
او ستا ټول دَ خوښۍ څيزونه
ورسره برابر نه دي
۱۶ په ښي لاس يې اوږدوالي دَ ورځو
دَي
او په کيڼ لاس يې دولت او عزّت دَي
۱۷ دَ دغه لارې دَ خوښۍ لارې دي
او ټول پندونه يې سلامتي

۱۸ دغه دَ ژوندون وُنه دَه دَده نيونکو ته
او چا چه په دغه لاس نيولي دي
هغه خوشحال دي
۱۹ خداوند ځمکه په حکمت سره بنا کړې دَه
آسمانونه يې په فهم سره ودرولي دي
۲۰ دَه به خپلې پوهې سره ژورې څيرې
کړې
او لړي شبنم تويه وي
۲۱ اې زما ځويه دغه له خپلو سترګو
مه لرې کوه
مصلحت او تدبير وساته
۲۲ نو دغه به ستا دَ ځان دَ پاره ژوند
او ستا دَ غاړې دَ پاره نعمت وي
۲۳ نو هغه وقت به ته په خپلو لارو کښې
په امان سره ځې
او پښې به دې ټينډک نه خوري
۲۴ چه ته څملې نو نه به ويرېږې
بلکه څملې به او ستا خوب به
لذّتناک وي
۲۵ له ناڅاپه ويرې مه ترسيږه
او نه له خرابۍ دَ شريرانو چه راشي
۲۶ ځکه چه خداوند به ستا پُشتي وي
او ستا پښې به له نيولو وساتي
۲۷ ته نيکي دَ دغې له خاوندانو نه مه منع کوه

هغه وقت چه ستا دَ لاس په
طاقت کښ وِي چه ته ئې وکړې
۲۸ ته خپل دوست ته مه وايه چه
ورځه او راوګرزه
او صبا به ئې درکړم
او هغه تا څخه دَې
۲۹ ته په خپل دوست بدِي مه کوه
او هغه دِ تا څخه په امان اوسِي
۳۰ ته له هيڅ سړِي سره بې سببه
جګړه مه کوه
که چرې ئې له تا سره بدِي کړې
نه وِي
۳۱ له ظالم سره کينه مه کوه
او دَده له لارې نه هيڅ مه خوښوه
۳۲ ځکه چه کوږ تلونکي دَ خداوند په
نزد پليت دَي
ليکن دَده راز له راستانو سره دَي
۳۳ دَ خداوند لعنت دَ شرير په کور
کښ دَي
ليکن دَ رښتينو مکان مبارک وِي
۳۴ په رښتيا سره دَي په ټوقمارانو
پورې ټوقې کوي
ليکن عاجزِي کونکو ته نعمت ورکوِي
۳۵ دانايان به دَ جلال وارثان شِي
او دَ احمقانو سرفرازِي به سپکه وِي

## څلورم باب

۱ اې ځامنو دَ پلار نصيحت واورئ
او دَ فهم پېژاندلو دَپاره ئې ونغورئ
۲ ځکه چه زه به تاسي ته نيک تعليم
درکړم
نو تاسي زما تعليم مه ترکوئ
۳ ځکه چه زه هم دَ خپل پلار ځوي وم
نازولي او وحيد په نزد دَ مور خپلې
۴ او ماته ئې را ښکاره کړي وه او راته
ويل ئې چه ستا زړه زما کلام
ضبط کړي
زما حکمونه وساته او ژوندي اوسه
۵ ته حکمت وګټه ته فهم وګټه
ته مه هېروه او زما دَ خولې له
خبرو ډډه مه کوه
۶ ته ئې مه ترکوه نو به دِ وساتِي
ته ورسره محبّت کوه نو به دِ
نګاه لرِي
۷ حکمت چه دَي سر دَي ته حکمت
وګټه
او په خپلو ټولو ګټلو سره فهم وګټه
۸ ته هغه پورته کړه نو هغه به تا
لوي کړي

چه ورسره غاړه غړئ شي نو به
دِ عزّت وکړِي
۹ ستا سر ته به دَ نعمت تاج درکړِي
دَ جمال تاج به در عنايت کړِي
۱۰ اي څما څويه واؤره او خبري مِ
قبولي کړه
نو ستا دَ ژوند کالونه به ډير شِي
۱۱ ما تاته دَ حکمت لار ښکاره کړي ده
دَ راستئ په لاري مِ بيولي يي
۱۲ هرکله چه ته ځي نو قدمونه
به دِ نه تنګيږِي
او چه ته زغلي نو ښيندک به
نه خوري
۱۳ نصيحت ونيسه او مه ئ سُست کړه
هغه وساته ځکه چه هغه ستا
ژوند دي
۱۴ نه دَ شريرانو په پند مه ننوزه
او دَ بدکارانو په لاري مه ځه
۱۵ نه ورنه وګرزه ته مه پرِ تيريږه
ورنه ګرزيږي شه او تير شه
۱۶ ځکه چه دوي خوب نه کوِي تو
چه شرارت و نه کړِي
اوخوب ورنه وکښلي شِي څو چه
څوک و نه پرزوِي

۱۷ ځکه چه دوي دَ شرارت ډوډئ
خوري
او دَ ظلم شراب څښي
۱۸ ليکن دَ صادقانو لاري چه دِي
لکه ځليدونکي نور زياتيږي
او ترکاملي ورځي رڼا کوِي
۱۹ ليکن دَ شريرانو لار لکه تاريکي
دوي هغه څيز چه ښيندک پري
خورِي نه پيژنِي
۲۰ اي څما څويه څما خبري واوره
څما وبلوته غوږونه مائل کړه
۲۱ له خپلو سترګو ئي مه لري کوه
دَ خپل زړه په مينځ کښ ئي
وساته
۲۲ ځکه چه دا هغوي لره چه موندَه
ئي کړِي ژوندون دَي
او روغتيا دَ هغو ټولو جُسې لره
۲۳ په ټولي ساتنې سره دَ خپل زړه
نظر کوه
ځکه چه مخرجونه دَ ژوند له دَغه
دِي
۲۴ کوږوالي دَ خولي درڅخه وباسه
او کوږوالي دَ شونډو درنه لري
کړه

٢٥ ستا سترګي دِ ستا دَ وړاندي نظر
کوِي
او ستا ښيزمي دِ سمي ستا په مخ
کښي
٢٦ دَ خپلو پښو لار آراسته کړه
نو ستا ټولي لاري به ثابتي وِي
٢٧ په ښي او په کيڼ طرف مه ګرزه
خپلي پښي له شرارتَ لري کړه

## پنځم باب

١ اي ځما ځويه ځما حکمت ته غوږ
ونيسه
خپل غوږونه ځما فهم ته مايل کړه
٢ چه ته تدبيرونه وساتي
او چه ستا شونډي دَ معرفت
نظر کوِي
٣ ځکه چه دَ پردئ ښځي شونډي
شهد څڅوي
او زنه يُ له تيلو زياته هوار دَه
٤ ليکن انجام ئي تريخ دي لکه
مستياره
تيره لکه دوه مخه توره
٥ پښي ئي مرګ ته کوزيږي
پلونه ئي دوزخ نيسي
٦ هسي نه چه دَ ژوندانه سمه لار
و موږي
دَدي منډونه کاږه دِي مګر دا
ئي نه پيژني
٧ نو اوس اي ځامنو ځما واورئ
او ځما دَ خولي له خبرو مه ګرزئ
٨ ته خپله لار له هغي نه لري کړه
او دَ هغي دَ کور دروازي ته مه
نژدي کيږه
٩ هسي نه چه ستا جمال نورو ته
او ستا کالونه تندمزاجو ته ورکړي
١٠ هسي نه چه پردِي خلق ستا له
قوّت ماړه شي
او ستا مشقت به پردِي کور کښي
وِي
١١ او ته به په خپلو آخرينو کښي
وِير کوي
هرکله چه خپلي غوښي او جسم
دِ ورک شي
١٢ نو ته به وايي چه ما ولي له
نصيحت سره کينه وکړه
او ځما زړه ترټنه سپکه وګڼله
١٣ او دَ خپلو مرشدانو آواز مِ
وانه وريده
او خپلو استاذانو ته مِ غوږونه
تيت نه کړل

۱۴ که چرې لږ نه وي نو زه به په ټولي
بدئ کښې وم
په مينځ دَ ټولي او دَ جماعت کښې
۱۵ له خپل تالاؤ نه اوبه څښه
او له خپل کوهي نه جارِي اوبه
۱۶ ته دِ خپلي چيني باهر نه وبهوي څهٔ
دَ اوبو لښتي په بازارونو کښې
۱۷ بواځي ستا دِ وي او ستا سره دِ
دَ پردو نه وي
۱۸ ستا چينه دِ مبارکه وي
او دَ خپلي ځوانئ په ښځي خوشحال
اوسه
۱۹ هغه محبوبه هوسئ او دَ نعمت
نخچيره
ته دِ دَ هغي له تيو هر وقت سيراب
يي
او دَدي په مينه مدام بېخوده اوسه
۲۰ اي ځما ځويه ته ولي په پردي کيفي
کيږي
او له بيګاني سره غيږ نيسي
۲۱ ځکه چه دَ انسان لاري دَ خداوند
دَ سترګو دَ وړاندِ دي
او دي دَ هغه ټولي لاري تلي
۲۲ شرير به دَده بدکارئ ونيسي
او دَ خپلو خطاؤ په رسيو به
ونيولي شي
۲۳ دي به بي نصيحت مړ شي
او په ډيري احمقئ خپلي کښې به
آواره شي

## شپږم باب

۱ اي ځما ځويه که ته دَ خپل دوست
ضامِن شوي يي
که تا له بل چا سره خپل لاس
ټکولي وي
۲ نو دَ خپلي خولي په خبري کښې
ګوړند شوي يي
ته دَ خپلي خولي په خبري نيولي
شوي يي
۳ اي ځويه اوس دا وکړه او ځان خپل
خلاص کړه
چه ته دَ خپل دوست په لاس
کښې شوي
نو لاړ شه اوزارِي وکړه او
دَ خپل دوست منّت وکړه
۴ خپلي سترګي خوب ته مه ورکوه
او نه پرناخپلو ځيږمو ته
۵ خپل ځان لکه هوسئ له لاس
نه خلاص کړه

لكه چرچنړه دَ ښكارِي له لاس نه
۶ اي كاهله ميږو ته ورشه
طريقې ئې خيرې كړه او حكيم شه
۷ چه دوي سردار
او رهنماي او حاكم نه لرِي
۸ په اوړِي كښ نمړئ خپله تيارَوِي
او په لَو كښ خوراك خپل جمع كوِي
۹ تر څو به اي كاهله خوب كوي
كله به له خپل خوب نه پاڅي
۱۰ لږ اوده كيدل لږ پرنا كيدل
او لږ نغښتل دَ لاسونو دَپاره دَ
خوبيدلو
۱۱ نو ستا خوارِي به لكه غل راشِي
او ستا مفلسِي به لكه بركيالي
وصله تړلي سَړي

۱۲ ناكاره سړَي بدكار سړَي
دَ خولي په كجروئِ رفتار كوِي
۱۳ خپلي سترګي رپوي په خپلي پښي
خبري كوِي
په خپلي ګوتي اشارت كوِي
۱۴ په زړه كښ ئې دروغ دِي په هر
وقت كښ شرارت كوِي
جګړي كوِي
۱۵ نو دي دَپاره به ناځاپه پرِي بلا
راشِي
په يو لحظې كښ به مات شِي او
شفا به ئې نه وِي
۱۶ له شپږو سره خداوند كينه لرِي
هو اوه دِي چه ورته نفرت كوِي
۱۷ هسكي سترګي دروغژنه ژبه
هغه لاسونه چه دَ بيګناه وينې
توئوِي
۱۸ هغه زړه چه بد فكرونه كوِي
هغه پښي چه بدئ ته په بيړه
سره زغلِي
۱۹ دَ ناحقې شاهد چه په دروغو
ئې لِي
او چه دَ ورونړو په مينځ كښ
جګړي كوِي

۲۰ اي ځما څويه دَ خپل پلار حكمونه
وساته
او دَ خپلي مور تعليم مه پريږده
۲۱ په خپل زړه كښ ئې مدام وتړه
دَ خپلي غاړي حميل ئې كړه
۲۲ چه ته ځي هغه به دِ رهنمائي كوِي
چه اوده شي نو نګهبانِي به دِ كوِي
او چه ويښ شي خبري به درسره كوِي

۲۳ ځکه چه وصیّت چراغ دئ
او توریت نُور دئ
او دَ نصیحت ترټني دَ ژوند لاري دي

۲۴ دَ پاره دَ ساتني ستا له شریري ښځي نه
دَ پردئ ژبي له خوشامدي نه

۲۵ نه دَ هغي ښائست په خپل زړه
کښ مه خوښوه
او تا دِ په خپلو بڼوکښ ونه نیسي

۲۶ ځکه چه دَ زاني ښځي په سبب
سړئ دَ ډوډئ یوي ګردي ته
او دَ سړي ښځه قیمتي ځان ښکار کوي

۲۷ سړي به په خپلي غیږ کښ اور ونیسي
او جامي به ئ ونه سوځي څه؟

۲۸ یا به سړي په سکروټو ځي
او پښي به ئ خوړيني نه شي څه؟

۲۹ هم هسي دئ هغه چه دَ خپل دوست
ښځي ته ورننوزي
هر څوک چه هغه مسه کړي بیګناه
به نه شي

۳۰ دَ هغه غله سپکه څوک نه کوي
چه غلا وکړي
چه خپل ځان موړ کړي او دئ
وږي وي

۳۱ که ونیولي شي نو اوه چنده به
ور وګرزولي شي
او دَ خپل کور ټول مال به ورکړي

۳۲ هغه چه له ښځي سره زِنا کوي
بي عقل دئ
دَ خپل ځان هلاکونکي دا کوي

۳۳ وهنه او شرمندګي به مومي
او عار به ئ توربلي نه شي

۳۴ ځکه چه غصّه له غیرتَ دَ سړي
دَه
نو دَ بدل آخستلو په ورځ به
شفقت ونه کړي

۳۵ هغه به هیڅ فدیي ته نظر ونه کړي
او نه به راضي ثي اګر که ته
ډير رشوت ورکړي ❊

## اوم باب

۱ اي ځما ځویه ځما کلام وساته
او ځما حکمونه ځان څخه ذخیره کړه

۲ ځما حکمونه وساته او ژوندئ اوسه
او ځما توریت لکه کسي دَ سترګو
خپلو

۳ په خپلو ګوتو ئ وتړه
دَ خپل زړه په تختئ ئ ولیکه

۴ نه دانائي ته ووایه چه ته ځما
خور يي

او فهم ته خپلوان ووایه
۵ چه له پردئ ښځي به دِ وساتي
له هغي بیګانې نه
چه په خبرو خوشامندي کوي
۶ ځکه چه ما دَ خپل کور له دریڅي نه
دَ خپلي کړکۍ نه نظر کاوه
۷ او دَ ساده ؤ په مینځ کښ مِ وکتل
او په ځلمنو کښ مِ ولیدیو ځوان
چه بې فهم وه
۸ په لارو کښ دَ هغي کټ څخه تیرېده
او دَ هغي دَ کور په لاري خوت
۹ په شپي کښ په نماښام دَ ورځي
په پردي دَ شپي او په تیاري کښ
۱۰ او هلته له یوي ښځي سره دوچار شه
دَ زاني په لباس کښ او دَ زړه په پردي کښ
۱۱ شور کونکي او سرکښه دَه
په خپل کور کښ ئې پښي نه ودرېږي
۱۲ کله په کوڅو کله په بازارونو کښ
او هري کونج څخه غلي کیدله
۱۳ نو هغي ونیو او ښکل ئي کړ
او خپل مخ ئي شوخ کړ ورته ئي ووي

۱۴ چه ذبحي دَ سلامتئ په ما دي
نن ورځ مِ خپل نذرونه ادا کړي دي
۱۵ دي دَپاره ستا دیدار ته را ووتم
چه مخ دِ ولټوم او ما موندلې يې
۱۶ ما په خپل پلنګ ریښمین غوړولي دي
او په نقش دارو کټانو دَ مصر سره
۱۷ ما خپله بچاونړه خوشبویه کړي ده
په مرو او په عودو او په تجو سره
۱۸ راشه چه ترصبا پوري په میني ماړه شو
په محبّت سره خوښي واخلو
۱۹ ځکه چه سړي په خپل کور کښ نشته
په لري لاري تلي دَي
۲۰ دَ سپینو زرو همیاني ئي په لاس کښ آخستلي دَه
دَ نوي میاشتي په ورځ به خپل کور ته راشي
۲۱ هغه په خپلو چلونو وغولوي
دَ خپلو شونډو په ټکئ ئي وپرزوي
۲۲ نو ناڅاپه ورپسي ځي لکه غویي

چه ذبحي ته ځي
یا لکه ناپوهه دَ نصیحت وځولانو ته
۲۳ ځوچه برچه ئې اینه څیري کړي
لکه مرغه چه دام ته بیړه کوي
او نه پوهیږي چه هغه
دَ ده دَ ځان دَپاره دئ
۲۴ نو اوس اي ځامنو ځما واوريِ
او ځما دَ خولي خبرو ته غوږونه کیږدئ
۲۵ خپل زړه دَ هغي لارو ته مه
مایل کوه
او دَ هغي په پندونو کښ مه
غلطیږه
۲۶ ځکه چه هغي ډیر پرهارژلي وغورزول
او ټول مقتولان لوي ډله ده
۲۷ دَ دي کور دَ دوزخ لار ده
دَ مرګ وخونو ته کوزیدونکي*

## انم باب

۱ کنړه دانائي ناري نه وهي څه ؟
او یا فهم خپل آواز نه ورکوي څه؟
۲ دَ اوچتو ځایونو دَ لاري سر څخه
دَ پندونو دَ ملیا کیدلو په ځاي
کښ ودریږي
۳ دَ دروازو په څنګ کښ دَ ښهر
دِربند څخه
دَ دروازو مدخلو څخه ناري وهي
۴ تاسو ته اي سړو ناري وهم
او آواز ځما بني آدم ته
۵ اي احمقانو زیرکي زده کړئ
او اي جاهلانو فهم دِله. شئ
۶ واوريِ ځکه چه زه به اشرافو
خبري کوم
او ځما دَ شونډو پرانتنه راستي ده
۷ ځکه چه ځما تالو به ربنتیا وبل کړي
او ځما دَ شونډو له شرارت نه
نفرت دي
۸ ځما دَ خولي ټولي خبري په صداقت
سره دِي
نه په هغو کښ کوږوالي نه پیچ شته
۹ ټولي دَ فهم کونکي په نزد صافي
دِي او راستي دِي
دَ هغو په نزد چه معرفت بیاموي
۱۰ ځما تنبیه واخلئ نه سپین زر
او معرفت له غوره ځو سرو زرونه
۱۱ ځکه چه دانائي له لعلونو بهتره ده
او ټول خواهشي څیزونه ورسره
برابر نه دِي
۱۲ زه دانائي یم له زیرکيِ سره اوسم،
او دَ تدبیرونو معرفت موم
۱۳ دَ خداوند خوف دَ بدئ سره

کینه لرِي
له کبرجنو او له لویو او دَ شرارت
له لاري
او دَ دروغو له خولې نه نفرت کوم
۱۴ زه مصلحت او رائې لرم
زه فهم یم زه قدرت لرم
۱۵ په ما سره بادشاهان بادشاهي کوِي
او غټان په عدل سره قضا کوِي
۱۶ په ما سره سرداران
او اشراف سرداري کوِي ټول
قاضیان دَ زمکې
۱۷ زه له هغو سره مینه کوم چه
له ما سره مینه کوِي
او هغوي چه سحر وقتِي را پسې
پاڅِي بیا به مِ مومِي
۱۸ ما څخه دولت او جلال دَی
قایم دولت او صداقت
۱۹ څما میوه له زرو بهتره دَه هو
له خالصو زرو نه
او څما حاصل له غوره سپینو
زرو بهتره دَه
۲۰ زه دَ عدل په لارو کښې ځم
دَ عدالت دَ لارو په منځ کښې
۲۱ نو زه به خپل محبّتِي ته دَ رزق
وراثت ورکړم
او دَ دوي خزانې به ډکې کړم
۲۲ خداوند ما ته له اول نه خپله
لار ذخیره کړه
له خپلو کارونو له قدیم وقت
له وړاندې
۲۳ له ازل نه ئې مسح کړم له ابتدا
نه
چه دا زمکه نه وه
۲۴ چه ژوره نه وه زه پیدا وم
چه دَ ډیرو اوبو چینې نه وې
۲۵ دَ غرونو له ودریدلو وړاندې
له غونډو وړاندِ پیدا وم
۲۶ چه لا زمکه ئې جوړه کړې نه وه
او نه میدانونه
او نه اول خاورې دَ دنیا
۲۷ هرکله چه ده آسمانونه ثابتول
زه هلته وم
هرکله چه دَ قهرِ دریاب په مخ
ئې دائره ودروله
۲۸ هرکله چه ده اوریځې پاس ودرولې
هرکله چه دَ ژورې چینې مطبوطې
کیدلې
۲۹ هرکله چه ده دریاب ته حد کینښود
چه دَ هغه اوبه دَ هغه له حکم نه

نعدِيَ و نه کړِي
هرکله چه ده بنیاد دَ زمکه نقش کړ
۳۰ زه دَده سره جوړآونکي وم
اوزه هره ورځ دَده لذّت وم
او مدام خوښي دَده دَوړاندِ
۳۱ خوښي دَده دَ زمکي په آبادئِ کښ
او ځما لذّتونه له بنيآدم سره
۳۲ نو اوس اي ځامنو ځما واورئِ
پس خوشحالِي ده هغو لره چه ځما
لاري ساتِي
۳۳ تعليم واورئِ او دانايان شئِ
او مه ئي ترکوئِ
۳۴ خوشحالِي دَه هغه سړِي لره چه
ځما آورِي
او چه هره ورځ ځما آستانو
ځنه وينښ وِي
او ځما دَدروازو په چوکټونو بيدار اوسِي
۳۵ ځکه هغه چه ما مومِي ژوندون
مومِي
او له خداوندَ به رضا مومِي
۳۶ او هغه چه له مانه خطا کيږِي
خپل ځان ته ضرر رسوِي
ځما ټول کينه کښان په مرګ مينه کوِي

# نهم باب

۱ دانائي خپل كور جوړ کړي دَيَ
خپلي اوه ستني ئي تراشلي دِي
۲ خپله ذبيحه ئي ذبحه کړي ده خپل
شراب ئي ګډ کړي دِي
خپل دسترخوان ئي هم آراسته
کړي دَي
۳ خپلي وينځي ئي استولي دِي ناري
کوِي
دَ ښهر په لوړو ځايونو کښ
۴ هغه څوک چه ساده وِي دلته
دِ راشِي
او چه زړه ئي کم دَيَ ورته ووايه
۵ راشئِ ځما ډوډئِ وخورئِ
او له هغو شرابو وڅښئِ چه ګډ
کړِي مِ دِي
۶ اي ساده ګانو پريږدئِ او ژوندِي
شئِ
او دَ فهم په لاري کښ ګرزئِ
۷ هغه چه ټوقمار ترټِي دَ خپل
ځان دَپاره رسوائِي حاصله کوِي
او هغه چه شرير ګرموِي عيب
حاصل کوِي

۸ ته ټوقمار مه ترټه هسي نه چه
له تا سره کینه وکړي
دانا وترټه او هغه به په تامینه
وکړي
۹ دانا ته يې ورکوه نو دَ هغه حکمت
به وافر شي
صادق ته تعلیم ورکوه نو هغه
به علم زیات کړي
۱۰ ابتدا دَ حکمت ویره دَ خداوند دَه
او معرفت دَ قدّوس فهم دَي
۱۱ ځما په سبب به ستا ورځي زیاتي شي
او تا ته به ستا دَ ژوند کالونه زیات
کړي شي
۱۲ که ته دانا يې نو دَ خپل ځان
دَپاره دانا يې
او که ته ټوقي کوي نو ته به يې
یواځي وړي
۱۳ جاهله ښځه شور کونکي دَه
دا احمقه دَه او په هیڅ څیز
نه پوهیږي
۱۴ دَ خپل کور دروازي ځنګه په
کرسئ کښېني
دَ ښهر په اوچتو باندي
۱۵ تاچه دَ لاري تیریدونکي ته ناري
وکړي
هغه چه په خپلو لارو سم درومي
۱۶ هغه چه ساده وي دلته دِ راشي
او هغه چه کم زړه لري ورته
دِ وایي
۱۷ چه دَ غلا اوبه خوږي دي
او ډوډئ په پټه سره لذتناکه دَه
۱۸ او هغه نه پوهیږي چه رفائم
هلته کښ دي
او دَ دوزخ په ژورو کښ دَدې
میلمانه دي *

## لسم باب

مثالونه دَ سلیمان

۱ دانا ځوي خپل پلار خوشحالوي
او جاهل ځوي خپله مورخپه کوي
۲ دَ شرارت خزاني فائده نه رسوي
لیکن صداقت چه دَي له مرګ
خلاصوي
۳ خداوند دَ صادق ځان نه وږي
کوي
لیکن دَ شریرانو خواهش دفعه کوي
۴ هغه چه په سُست لاس کار کوي
خوار به شي
لیکن دَ مشقت کونکو لاس به

دولتمند کوي
٥ هغه چه په اوړي کښې جمع کوي
عاقل ځوي دی
او هغه چه په لو کښې اوده کېږي
هغه شرموونکي ځوی دی
٦ دَ صادق په سر برکتونه دي
لیکن ظلم دَ شریرانو خولې پټوي
٧ دَ صادق ذکر دَ برکت دَ پاره دی
لیکن دَ شریرانو نوم به وروست شي
٨ دانا زړه حکمونه قبلوي
لیکن ناپوهه شونډي به وپرزي
٩ هغه چه په راستئ ګرزي په امان
ګرزي
او هغه چه خپلې لارې کږې کړي
و به پېژاندلی شي
١٠ هغه څوک چه په سترګو اشارتونه
کوي دَ غم سبب دی
او لاپي وهونکي شونډي به وپرزولې
شي
١١ دَ صادق خوله دَ ژوندانه چینه ده
او دَ شریرانو خولې به په ظلم پټې وي
١٢ کینه جګړې پورته کوي
او محبت ټول تقصیرونه پټوي
١٣ دَ عاقل په شونډو کښې دانائي
موندلې کېږي

او دَ کم‌زړه شا دَ پاره همسا
١٤ دانایان معرفت ذخیره کوي
لیکن دَ ناپوهه خوله هلاکت ته
نژدې ده
١٥ دولت غني لره مضبوط ښهر دی
دَ دوي هلاکت دَ مسکینانو خوارې
ده
١٦ دَ صادق عمل دَ ژوندانه دَ پاره دی
دَ شریر ګټه دَ خطا دَ پاره
١٧ دَ تعلیم ساتونکي دَ ژوندانه په
لار کښې دی
او ترکونکي دَ تنبیه ګمراه دی
١٨ هغه چه کینه پټوي نو دَ هغه
شونډي دروغژني دي
او شکایت ویونکي جاهل دی
١٩ ډیرې خبرې ګول له تقصیره خالي
نه وي
لیکن دَ شونډو قابوکونکي دانا دی
٢٠ دَ صادق ژبه غوره سپین زر دي
دَ شریرانو زړه لکه لږ څه شي
٢١ دَ صادق شونډي ډېروته هدایت
کوي
لیکن ناپوهان کم زړي نه مړه
کېږي
٢٢ دَ خداوند برکت دولت بخښي

او دَي له هغه سره هيڅ عذاب نه زياتوي
۲۲ زبوني كول دَ جاهل په نزد لكه خندا
او دانائي كول پوهان لره
۲۴ دَ شرير خوف به په ده راشي
او دَ صادق مراد به پوره شي
۲۵ لكه گرد باد تيريدل داسي به شرير نه وي څه ؟
ليكن رښتني چه دَي ابدي بنياد دَي
۲۶ لكه سركه غاښونو لره او لوگي سترگو لره
هم هسي كاهلان هغو لره چه وائي ستوي
۲۷ دَ خداوند ويره ورځي زياتوي
ليكن دَ شريرانو كالونه به لنډ كړي شي
۲۸ دَ رښتني انتظار خوښي دَه
ليكن دَ شريرانو اميد به تباه شي
۲۹ دَ راستانو دَپاره دَ خداوند لار پناه دَه
ليكن دَ بدكارانو دَپاره هلاكت دَي
۳۰ رښتني به هرگز و نه خوځيږي
او شريران به په زمكه كښي ونه اوسي
۳۱ دَ رښتني خوله دانائي زرغونه وي
ليكن دروغژني ژبي به پريكړي شي
۳۲ دَ رښتني شونډي خوښه خبره پيژني
او دَ شريرانو خولي دروغ +

## يولسم باب

۱ دَ تكي تله خداوند ته مكروه دَه
ليكن پوره وزن دَده رضا دَه
۲ چه كبرجني راشي نو رسوائي هم راشي
او له حليمانو سره دانائي دَه
۳ دَ راستانو راستي به دَدوي رهنمايه شي
او كوږوالي دَ تكانو به دوي خراب كړي
۴ دَ قهر په ورځ دولت فائده نه رسوي
ليكن صداقت له مرگ نه خلاصوي
۵ صداقت دَ كامل به دَده لار قائمه كړي
ليكن شرير چه دَي به خپل شرارت به وپرزي
۶ دَ راستانو صداقت به دوي خلاص كړي
ليكن تكان چه دي به خپل فساد به و نيولي شي
۷ شرير سړي چه مړ شي نو دَده اميد هم هلاك شي
او دَ بدكارانو انتظار به بيديا شي

۸ رښتني به له تنګئ نه خلاص شي
او دَده په ځاي به شرير راشي
۹ منافق په خپلي خولي خپل دوست
خرابوي
او رښتني په معرفت خلاصيږي
۱۰ دَ رښتينو په بهتريء ښهر خوشحاليږي
او دَ شريرانو په هلاکت دَخوښيء
ناري وهي
۱۱ دَ راستانو په برکت ښهر لوئيږي
او دَ شريرانو په خولي نړيږي
۱۲ هغه چه دَ خپل دوست سپکه کوي
کم زړي دَي
ليکن فهمدار چپ اوسي
۱۳ هغه چه په شکايت کښ تلونکي
دَي راز فاش کوي
او امانتدار دَ روح خبره پټوي
۱۴ هرچرته چه تدبير نشته خلق پرزي
ليکن سلامتيا چه دَه په ډيرو
صلاح کارانو سره دَه
۱۵ هغه چه دَ بيګانه ضامن کيږي
په لوي زيان به وزيانيږي
او چه دَ لاس له تکولو سره
نفرت کوي خاطرجمع به شي
۱۶ هغه ښځه چه دَ نعمت خاوندَه
وي عزّت حاصل کوي
او غوښتلي دولت حاصل کوي
۱۷ رحيم سړي له ځان سره نيکي کوي
او سرکښ خپلي غوښي خوږي کوي
۱۸ شرير دَ دروغو مزدوري کټي
او دَ صداقت دَ کرونکي مزدوري
امانتداري دَه
۱۹ هغه چه په راستيء کښ قايم دَي
ژوندانه ته رسوي
او هغه چه په شرارت پسي
زغلي خپل مرګ ته
۲۰ هغوي چه په زړه کښ کاږه دِي
دَ خداوند نفرت دَي
او دَده رضا له سمو لارو والو
سره دَه
۲۱ که لاس په لاس وي شرير به
بيسزا نه شي
ليکن دَ رښتينو اولاد به خلاصي
ومومي
۲۲ ښائسته ښځه چه بيعقلَ وي لکه
دَ سرو زرو نته دَه
دَ سرکوزي په پوزه کښ
۲۳ صرف آرزو دَ صادقانو ښه دَه
اميد دَ شريرانو غضب دَي
۲۴ داسي کيږي چه په خواريء کښ هم
زياتيږي

او هغه چه په لياقت کښ ئي ډير
زيات ساتي خو هم خوار وي
۲۵ دَ سخي ځان څربيږي
او چه اوبه کونکي دَي هغه به هم
اوبه کړي شي
۲۶ دَ غلي په ساتونکي به خلق لعنت
کوي
او برکت دَ هغه په سر دَ خرڅونکي
۲۷ هغه چه خير لټوي د رضا التماس
کوي
او هغه چه بدي لټوي بدي به
ورته راشي
۲۸ هغه چه په خپل دولت تکيه کوي
پري به وزي
ليکن رښتيني به دَ پاڼو په شان
تازه وي
۲۹ هغه چه خپل کور ربړوي دَ
باد وارث به شي
او ناپوهه به دَدانا زړه خادم شي
۳۰ دَ رښتني ميوه دَ ژوندانه ونه
دَه
او هغه چه دانا دي ځانونه گټي
۳۱ گوره رښتني ته به په زمکه کښ
بدله ورکړي شي
نو لا څومره زياته شرير او خطاکار ته

# دولسم باب

۱ هغه چه له نصيحت سره محبّت
کوي له معرفت سره محبّت کوي
او هغه چه له تنبيه سره کينه کوي
هغه بي سُده دَي
۲ نيکه سړي له خداوند نه رضا
حاصله کوي
ليکن په مکار سړي به حکم وکړي
شي
۳ له شرارت سره سړي ثابت کيدلي
نه شي
ليکن دَ رښتينو بيخ به ونه خوځيږي
۴ نيکه ښځه خپل ميړه لره تاج دَي
ليکن رسواکاره چه دَه لکه وروستوالي
دَده په هډوکو
۵ دَ رښتينو فکرونه عدل دي
تدبيرونه دَ شريرانو کوټه دي
۶ دَ شريرانو خبري دَ خون پسولي دَه
ليکن خوله دَ راستانو چه ده دوي
به خلاص کړي
۷ شريران به وارړوي او نه به وي
ليکن دَ رښتينو کور به ثابت پاتي شي
۸ دَ سړي دَ زيرکئ په موافق به دَده
صفت وکړي شي

لیکن کوږ زړه چه دي سپک به
کړي شي
۹ هغه زبون سړي چه مريي لري
بهتر دي
له هغه چه خپل ځان لوي کړي
او د ډوډۍ احتياج لري
۱۰ رښتينيَ د خپل څاروي ځان پېژني
ليکن د شريرانو رحمتونه سختدلي ده
۱۱ هغه چه په خپل ږيږي کښ شغل
کوي په ډوډۍ به موړ شي
ليکن هغه چه د لوچکانو پيروي
کوي بي فهمَ دي
۱۲ شرير د شريرانو ښکار غواړي
او د رښتينو بيخ به ورکوي
۱۳ د شونډو په تقصير کښ دام د
شرير دي
مګر رښتيني به له تنګۍ ووزي
۱۴ سړي به د خپلي خولي د ميوي
په خير موړ شي
او د سړي د لاس بدله به ده
ته ور وګرزي
۱۵ د جاهل لار د ده په سترګو
کښ سمه ده
ليکن آوريدونکي د مصلحت چه
دي دانا دي

۱۶ غضب د جاهل به د ده په ورځ
کښ معلوم کيږي
ليکن پټونکي د رسوائۍ زيرک دي
۱۷ هغه چه په ځو خوله وهي صداقت
ظاهروي
او دروغژن شاهد دروغ
۱۸ هغه موندلي شي چه د تورې
د ځيرولو په شان بد ويل کړي
ليکن د دانايانو ژبه شفا ده
۱۹ د رښتيني ژبه تر ابد پوري ثابته
وي
او دروغژن ژبه ترسترګو څنبلو
وي
۲۰ هغوي چه د بدۍ فکر کوي په
زړه کښ تګۍ لري
او هغوي چه د سلامتيا مصلحت
کوي ورلره خوښي ده
۲۱ رښتيني ته به بد و نه رسيږي
ليکن شريران به په بدۍ ډک شي
۲۲ له دروغژنو شونډو نه د
خداوند نفرت دي
ليکن چه په رښتينۍ کار کوي
خوښ ئي دي
۲۳ زيرک سړي معرفت پټ لري
او د جاهل زړه په احمقۍ ناري کوي

۲۴ دَ کوشش کونکي لاس به حکم کوِي
لیکن سُست چه دَيَ تربیګار دَ لاندِ به وِي
۲۵ غم دَ سړِي په زړه کښ هغه کوبوِي
مګر ښه خبر ئې خوشحالوِي
۲۶ رښتِینِي خپل دوست ته هدایت کوِي
لیکن دَ شریرانو لاري دوي ګمراه کوِي
۲۷ سُست سړَي خپل ښکار نه ورِیتوِي
لیکن بیش‌قیمت دولت دَ سړِي محنت کونکو ته کیږِي
۲۸ دَ صداقت په لاروَ کښ ژوندون دَيَ
او دَ هغه دَ تلو په لار کښ مرګ نشته ۞

# دیارلسم باب

۱ دانا ځوي دَ خپل پلار نصیحت قبول کوِي
او ټوقمار ترټنه نه اورِي
۲ سړِي دَ خپلي خولي له میوی نه ښه خورِي
او ځان دَ تېکِي کونکو ظلم
۳ هغه چه خپله خوله ساتِي خپل ځان ساتِي
او هغه چه خپلي شونډي پرانزِي
هلاک به شِي
۴ دَ سُست زړه غوارِي او هیڅ نه لرِي
او دَ کوشش کونکو ځان به څورب کړي شي
۵ رښتِینِي له دروغو سره کینه لرِي
مګر شریر سړِي به ګنده او خجل شِي
۶ صداقت دَ هغه ځار کوِي چه په لار کښ کامل وِي
او شرارت خطاکار آړوِي
۷ هغه څوک مونده کیږِي چه دولتمندي کوِي او هیڅ نه لرِي
او هغه څوک شته چه خوارِي کوِي او ورځنه ډیر دولت دَي
۸ دَ سړِي دَ ځان فدیه دَده دولت دَيَ
لیکن خوار سړَي ترټنه نه آورِي
۹ دَ رښتِینو نُور خوښي کوِي
مګر ډیوه دَ شریرانو به مړه شِي
۱۰ جګړه خاصه له کبرجنئِ نه کیږِي
او له مصلحت کونکِي سره حکمت دَي
۱۱ دَ بطلان دولت کمیږِي
او هغه چه په خپل لاس ټولوِي زیاتیږِي

۱۲ هغه امید چه ډیل کونکَي وِي زړه
رنځوروِي
او پوره شوي آرزو دَ ژوندانه ونه
دَه
۱۳ هغه چه دَ کلام سپکه کِوي خپل
ځان خرابَوِي
او هغه چه له حکمَ ویره کِوي ورلره
به اجر وِي
۱۴ دَدانا تعلیم دَ ژوندانه چینه دَه
دَپاره دَ خلاصون له لومو دَ مرګ نه
۱۵ فهم فضل بخښِي
لیکن دَ ټګانو لار دشواره دَه
۱۶ هر زیرک په معرفت سره کار کِوي
لیکن جاهل خپله احمقِي مشهوروِي
۱۷ شریر استاذي په شرکښ پرېوزِي
او امانتدار قاصد په شِفا
۱۸ خواري او رسوائِي هغه لره چه
تنبیه ترکوِي
او هغه چه دَ ترټني لحاظ کوي
عزّت به وموِي
۱۹ چه مراد پوره کیږِي نو زړه خوشحالیږِي
لیکن له بدیُ نه ګرزیدل جاهلان
مکروه ګڼږِي
۲۰ هغه چه له دانایانو سره سیر کِوي
دانا به شِي
او دَ جاهلانو ملګري به ضرر
وموِي
۲۱ بدي به خطاکارانو پسي دروِمي
او رښتیني به دَ ښیګړي بدله وموِي
۲۲ نیک سړَي دَ خپلو ځامنو ځامنو
ته میراث پرېږدي
او دَ خطاکار دَولت رښتینو ته
جمعَ کیږِي
۲۳ دَ خوارانو په دهقانیُ کښ ډیر
خوراک دَي
او له بي انصافِي نه هلاک کیږِي
۲۴ هغه چه خپله لخته منعَ کِوي له
خپل ځوي سره دښمنِي کِوي
او هغه چه مینه پرې کِوي سحر
وقتِي نصیحت ورکِوي
۲۵ رښتیني به دَ ځان دَ موړتیا دَپاره
خورِي
لیکن دَ شریرانو ګیډه به محتاج وِي *

# څورلسم باب

۱ دانا ښځې دَ خپل کور بنا کِوي
لیکن احمقي ئِي په خپلو لاسونو نړوِي
۲ هغه چه په خپلي راستيُ دروِمي له
خداوند نه ویریږِي
او هغه چه لارې ئې کږي دي دَده

سپکه کوي
۳ دَ جاهل په خولي کښ دَ کبرڅنئ
سوټي دي
ليکن شونډي دَ دانايانو به دوي
وساتي
۴ هلته چه غوايان نه وي غوجلي
صافي وي
او ډيروالي دَ غلي دَ غوايه په قوت
سره دي
۵ امانتدار شاهد دروغ نه وايي
او دروغژن شاهد په دروغو خوله
وهي
۶ ټوقمار دانايي لټوي او نه ئي
مومي
او پوهه فهمدار لره آسانه ده
۷ دَ جاهل سړي له وړاندِ نه لاړ
شه
چه دَ معرفت شونډي په کښ
نه پيژني
۸ دَ زيرک دانايي دا ده چه خپله
لار و پيژني
او احمقي دَ جاهلانو ټګي ده
۹ جاهلان په ګناه سره ټوقي کوي
او دَ راستانو په مينځ کښ رضا ده
۱۰ زړه دَ خپل ځان ترخوالي پيژني
او بيګانه دَ ده په خوښئ کښ
نه شريکيږي
۱۱ دَ شريرانو کور به برباد شي
او دَ راستانو خيمه به وځليږي
۱۲ داسي لار شته چه سړي ته
سمه ظاهره کيږي
او په انجام کښ ئي دَ مرګ لاري دي
۱۳ په خندا کښ هم زړه خپه کيږي
او دَ خوشحالئ انجام غم دي
۱۴ هغه چه په زړه کښ مرتد دي
له خپلو لارو به موړ شي
او نيک سړي له هغه ځه نه
چه ورځخه دي
۱۵ نادان په هري خبري باور کوي
او زيرک خپلو قدمونو ته خير کوي
۱۶ دانا ويريږي او له شرارت نه
ګوښي کيږي
او جاهل لافي وهي او ټينګ اوسي
۱۷ زر غصه کيدونکي په احمقئ سره
کار کوي
او دَ مکاريو خاوند نفرتي شي
۱۸ ناپوهان دَ احمقئ وارثان کيږي
او زيرکان به په معرفت تاجدار
شي
۱۹ شريران دَ نيکانو دَ وړاندي

او بدکاران دَ رښتینئ دروازو ځنګه
تِیت کیږي
۲۰ خوار له خپل ګاونډِي هم نفرتِي
شوي دئ
او دَ دولتمند محبّان ډیر دِي
۲۱ هغه څوک چه دَ خپل ګاونډِي سپکه
کوِي خطا کوِي
او چه په مسکینانو رحم کوِي هغه
لرِه خوشحالي دَه
۲۲ شرارت سازونکي به خطا نه شِي څهٔ
لیکن رحمت او حق نیکِي کونکیو
ته وِي
۲۳ په هر محنت کښ نفعه دَه او خبرِي
دَ شونډو ترخوارئ پورِي وِي
۲۴ دَ دانایانو تاج دَ دوي دولت دئ
دَ جاهلانو احمقِي دَ دوي دَ وړاندِ
دَه
۲۵ امانتدار شاهد دَ ځانونو خلاصونکي
دئ
او هغه چه په دروغو ویل کوِي
ټګان دِي
۲۶ دَ خداوند په ویرِي کښ ټینګ
امید دئ
او دَ دغه ځامنو لرِه پناهګاه وِي
۲۷ دَ خداوند ویره دَ ژوندانه چینه دَه
چه دَ مرګ له لومو ګوښي کیږِي
۲۸ دَ خلقو په ډیروالِي کښ دَ بادشاه
زینت دئ
او په کموالي دَ قوم کښ هلاکت
دَ امیر دئ
۲۹ هغه چه په درنګ سره غُصّه
ورځِي ډیر فهم لرِي
او تند مزاج چه دئ دَ احمقِي
لویونکي دئ
۳۰ قراري دَ زړه ژوند دَ جسّي دئ
لیکن وروستوالِي دَ هډوکو کینه دَه
۳۱ هغه چه په خوارانو ظلم کوِي دَ
خپل خالق ملامتیا کوِي
او دَ مسکینانو رحم کونکي یئ
تعظیم کوِي
۳۲ شریر به په خپل شرارت وشړلې
شِي
لیکن رښتِینئ په خپلو مړېدلو
کښ هم امیدوار وِي
۳۳ دَ فهمدار په زړه کښ دانایِي
قراري کوِي
او دَ جاهلانو دَ منه حال ښکاره لي
شِي
۳۴ رښتِینِي ټولِي ته سرفرازي بخښِي
او عار دَ خلقو خطا دَه

٣٥ په دانا مريي دَ بادشاه مهرباني دَه
ليکن په شرمونکي به دَده غضب
وي *

## پنځلسم باب

١ نرم ځواب غصّه لري کوي
او غضبناک کلام غصّه تيزه کوي
٢ دَ دانايانو ژبه معرفت ښائسته کوي
او دَ جاهلانو خوله احمقي توېوي
٣ دَ خداوند سترګي په هر ځاي
کښ دي
څېر کوونکي دَ بدانو او دَ نيکانو
٤ راستي دَ ژبي دَ ژوندانه ونه دَه
او کوږوالي ئي په روح کښ سُولول
دي
٥ احمق دَ خپل پلار نصيحت سپکه ګڼړي
ليکن دَ تنبيه ساتونکي هوښيارِي ګټي
٦ دَ رښتيني په کور کښ لويه خزانه دَه
مګر دَ شرير په حاصلو کښ
پريشاني دَه
٧ دَ دانا شونډي معرفت خور وي
ليکن دَ جاهلانو زړه داسي نه ديَ
٨ دَ شريرانو ذبحي خداوند ته
نفرتي دي
او دُعا دَ راستانو دَده خوښي دي

٩ دَ شرير له لاري دَ خداوند نفرت ديَ
اوچه په صداقت پسي زغلي مينه
پر کوي
١٠ دَ لاري پرېښوونکي لره سخته تنبيه
دَه
دَ ترټني په کينه کښ به مر شي
١١ دوزخ او هلاکت دَ خداوند دَ
وړاندِ دي
لاڅومره زيات زړونه دَ بني آدم
١٢ ټوقمار خپل ترټونکيَ دوست
نه لري
دانايانو ته نه ورځي
١٣ خوشحال زړه مخ کشاده کوي
او دَ زړه په غم روح ميده کيږي
١٤ دَ فهمدار زړه معرفت لټوي
او دَ جاهلانو خوله احمقي خوري
١٥ ټولي ورځي دَ غمجن بدبختيَ دي
ليکن خوشدلي چه ده دائمه خوړنه
دَه
١٦ لږ څه دَ خداوند له ويري سره
بهتر دي
له لوي خزاني نه چه له ربړه
سره وي
١٧ دَ ساګو خوراک هلته چه مينه
دَه بهتر ديَ

له ساتلي غوايه نه چه ورسره کينه وِي
۱۸ غصّه ناک سړي جګړه پورته کوِي
مګر سُست غصّي وال جګړي قرار کوِي
۱۹ دَ سُست سړي لار لکه دَ اغزو دَ شپول ده
او دَ راستانو لار اوچت سړک دَی
۲۰ دانا ځوي خپل پلار خوشحالوِي
او جاهل سړي دَ خپلي مور سپکه کوِي
۲۱ کم زړه لره احمقي خوشحالي دَه
ليکن دَ فهم خاوند خپل چلن سم کوِي
۲۲ بي مصلحتَ مرادونه باطل کيږي
او په ډيرو مشرانو سره پوره کيږي
۲۳ انسان لره دَ خپلي خولي په ځواب خوشحالي دَه
او خبره په خپل وقت څرنګ ښه ده
۲۴ دَ دانا دَپاره دَ ژوندانه لار پورته ده
دَپاره دَ کناره کيدلو له دوزخ نه چه لاندِ دَی
۲۵ خداوند به دَ کبرجنو کور و نړوِي
او دَ کونډې حدونه به مضبوط کړِي

۲۶ دَ شرير له فکرونو نه دَ خداوند نفرت دَي
او دَ پاکانو دَپاره ښي خبري دِي
۲۷ هغه چه دَ ګټي حرصناک وِي خپل کور ربړوِي
او هغه چه له هديو نفرت کوِي ژوندي به وِي
۲۸ دَ رښتينِي زړه په ځواب کښ فکر کوِي
او دَ شريرانو خولي شرونه توئوِي
۲۹ خداوند له شريرَ لري کيږي
او دَ رښتينو دُعا آورِي
۳۰ نُور دَ سترګو زړه خوشحالوِي
او خوشخبري هډونه څربوِي
۳۱ هغه غوږونه چه دَ ژوندانه تنبيه اورِي
دَ داناياتو په مينځ کښ به قراري وکړِي
۳۲ هغه ځوک چه نصيحت منع کوِي خپل ځان زبون کوِي
او ځوک چه تنبيه اورِي فهم به جمع کړِي
۳۳ دَ خداوند ويرَه دَ حکمت پوه دَه
او له عزّت نه وړاندِ خاکساري دَه *

# شپاړسم باب

١ انسان لره دَ زړه تدبيرونه دِي
او له خداوند نه ځواب دَ ژبي
٢ ټولي لاري دَ انسان دَده دَ ځان
په سترګو کښې پاکي دِي
او خداوند دَ ارواحونو تلونکي دَي
٣ ته خپل کارونه په خداوند واچوه
نو دَي به ستا فکرونه ثابت کړي
٤ خداوند ټول دَ خپل غرض دَپاره
جوړ کړي دِي
او شرير ئې دَ شرارت دَ ورځي دَپاره
٥ له هر کبرجن زړه نه دَ خداوند
نفرت دَي
لاس به له لاس بي‌سزا نه شي
٦ په رحمت او په حق سره بدي پټيږي
او دَ خداوند په ويري کښې له
شرارت کناره کيدل دِي
٧ هر کله چه دَ انسان لاري خداوند
راضي کړي
نو دَده دُښمنان به دَده سره
په صلح کښې راوړي
٨ لږ څه له صداقت سره بهتر دِي
له ډېر حاصل نه په بي‌انصافئ
سره

٩ دَ انسان زړه په خپلو لارو کښې
فکر کوي
او خداوند دَ هغه قدمونه ثابتوي
١٠ دَ بادشاه په شونډو کښې وحي ده
دَ خپلي خولي په عدالت کښې
خيانت نه کوي
١١ حقّه تله او وزنونه ئې دَ خداوند
دِي
ټول وزنونه دَ هميانئ دَده دَ کار
دِي
١٢ دَ شرارت له کاره دَ بادشاهانو
نفرت دَي
ځکه چه تخت په صداقت سره
ټينګ کيږي
١٣ رښتني شونډي دَ بادشاهانو
خوښي دِي
او چه په راستئ خبري کوي ورسره
مينه کوي
١٤ غضب دَ بادشاه قاصدان دَ مرګ
دِي
او دانا سړي هغه ګرزوي
١٥ دَ بادشاه دَ مخ په نور کښې ژوندون
دَي
او دَده رضا دَ ورستني باران
دَ اوريځي په شان ده

۱۶ کتل دَ دانايِۍ له سرو زرو نه
څومره بهتر دِي
او کوتي دَ فهم په سپينو زرو
غوره شوي دِي
۱۷ دَ راستانو سړک دا دَيَ چه
له شرارت نه ګوښي شي
دَ خپل ځان ساتونکيَ دَ خپلي
لاري ساتونکي دَيَ
۱۸ له ماتيدلو نه وړاندِ کبرجني ده
او له پريوتلو نه وړاندِ غرور دَ
روح دَيَ
۱۹ خاکساري دَ روح له عاجزانو سره
بهتره ده
له ويشلو دَ لوټ نه له کبرجنو
سره
۲۰ هغه چه په کلام غور کوي ښيګړه
مومي
او هغه چه په خداوند توکّل کوي
هغه لره خوشحالي ده
۲۱ دانا زړه وال فهمدار بللي شي
او دَ شونډو خوږوالي علم زياتوي
۲۲ هوښياري خپل خاوند لره دَ
ژوندانه چينه ده
او ترټنه دَ احمقانو احمقي ده
۲۳ دَ دانا زړه دَده خولي ته رهنمايِۍ
کوي
او دَده دَ شونډو علم زياتوي
۲۴ ښي خبري دَ شهدو ځپياکه ده
خواږه دَ ځان او شفا دَ هډوکو
۲۵ داسي لار شته چه سړي ته سمه
ښکاريږي
ليکن انجام ئِ دَ مرګ لاري دِي
۲۶ لوږه دَ مزدور ده لره خواري ده
ځکه چه دَده خوله ئِ ورنه غواړِي
۲۷ زبون سړيَ شرارت کني
او دَده په شونډو کښ لکه بليدونکيَ
اور دَيَ
۲۸ دَ دروغو سړيَ جګړي خوروي
او چغلخور دوستان سره بيلوِي
۲۹ ظالم سړيَ خپل دوست غولوِي
او ناصالحي لاري ته ئِ ورولي
۳۰ هغه چه سترګي پټوِي په دروغو کښ
فکر کوِي
هغه چه خپلي شونډي ژوبي شرارت
پوره کوِي
۳۱ زوړوالي دَ ښائست تاج دَيَ
که چري صداقت ئي په لار کښ
مونده کيږي
۳۲ په غضب کښ سُست له جبّار
نه بهتر دَي

او هغه چه دَ خپل روح مالک
وِي له هغه نه چه ښهر واخلي
بهتر دَي
٣٢ هِسک به غیږ کښ اچولی شِي
او ټول حکم ئي له خداوندَ دَيَ

## اوه لسم باب

١ وچه نوړئ چه ورسره آسودګي
وِي
له هغه کور نه بهتره دَه چه له ښکو
ډک او ورسره جګړي وِي
٢ هوښيار مريي به بي شرمه ځوي
حکم کوي
او دَ ورونړو به مينځ کښ به
ميراث واخلي
٣ کوټالئِ دَ سپينو زرو دَپاره او
تنور دَ سرو زرو دَپاره
او امتحان کونکي دَ زړونو خداوند
دَي
٤ شرارت کونکَي بدکارو شونډو
ته غوږ نيسي
او دروغژن دَ فاسدي ژبي نغوړي
٥ هغه چه به خوارانو پوري ټوقي
کوي دَ خپل خالق سپکه کوي
هغه چه به آفت خوښيږي بي سزا
به نه شِي
٦ تاج دَ زړو ځامن دَ ځامنو دَي
او فخر دَ ځامنو دَ دوي پلرونه دِي
٧ له احمق سره ښي شونډي لايقي
نه دِي
لا ځومره زياتي دروغژني شونډي
له اشراف سره
٨ هديه چه دَه ګران بها کاڼي دَي
دَ هغه لرونکي لره
هرچرته چه مخ کړي کامیابه کيږي
٩ هغه چه قصور پټوي محبّت لټوي
او هغه چه يوه خبره دوباره کوي
دَ دوستانو په مينځ کښ جدائي
اچوي
١٠ ترټنه به فهمدار کښ ډير زيات
اثر کوي
له سلو کوړو به جاهل کښ
١١ شرير ياغيتوب لټوي
نو په ده باندِ زبردست قاصد
واستولي شِي
١٢ انسان به دَ بوري يږي مقابله
وکړي شِي
نه دَ جاهل دَده به احمقئ کښ
١٣ هغه چه دَ نيکئ بدله بدي
ورکوي

بدِي به ذده له کور نه لرِي نشي
۱۴ ابتدا دَ جګړو پرېښودل دَ اوبو دي
نو وړاندِ له نوپ وهلو دَ جګړي
نه ئي ترکه کړئِ
۱۵ رښتني کول دَ ګناهګار او ګناهګار رول
دَ رښتنِي
له دغي دواړو نه دَ خداوند
نفرت دي
۱۶ څله دَ جاهل په لاس کښ روپئ
دِي دَ حکمت دَ پیرودلو دَپاره
او هغه فهم نه لرِي
۱۷ هغه چه دوست دي په هر وقت
کښ مینه کوِي
او ورور چه دي دَ تیګئِ دَپاره
پیدا شوي دي
۱۸ کم فهمَ سړيَ ورغوِي ټکوِي
او په ضامنئِ سره دَ خپل
دوست ضامن کیږِي
۱۹ مینه دار دَ تقصیر مینه دار دَ
جګړي دي
هغه چه دروازه اوچتوِي هلاکت
غواړِي
۲۰ هغه چه زړه ئي کوږ دي خیر
به نه مومِي
او چه په ژبي اړول کوِي په بدئِ
کښ پرېوزِي
۲۱ هغه چه جاهل څوي زیږوِي
دَ خپل غم دَپاره ئي دي
او دَ احمق پلار به خوښي ونه کړِي
۲۲ خوشحالَ زړه ښه دارو دي
او څپلي روحِي هډونه وچوِي
۲۳ شریر له غیږي نه رشوت اخلِي
چه دَ عدالت لاري کږي کړِي
۲۴ دانائي دَ فهمدار په مخ کښ ده
او دَ جاهل سترګي دَ زمکي په
کنارو دِي
۲۵ جاهل څوي خپل پلار لره غم دي
او تلخي هغي لره چه وئي زیږاوه
۲۶ په عذاب کول دَ رښتنِي هم ښه
نه دِي
او داسي وهل دَ اشرافو دَ راستيِ
دَپاره
۲۷ هغه چه خپله خبره ساتي دَ معرفت
خاوند دي
او هغه چه سوړ روح لرِي دَ
فهم خاوند دي
۲۸ احمق چه چُپ اوسِي دانا ګڼلي
شِي
او هغه چه خپلي شونډي بندئ
لرِي فهمدار ګڼلي شِي

# اتلسم باب

۱ هغه چه جدائي کونکي دئ خپله
خوښي غواړي
په هر مصلحت غصّه کيږي
۲ جاهل په فهم نه خوښيږي
بلکه دَ خپل زړه په ښکندولو
۳ هرکله چه شرير راځي سپکه هم
راځي
او له سپکي سره ملامتي
۴ دَ انسان دَ خولې خبري ژوري اوبه
دي
دَ حکمت چينه جاري وله دَه
۵ دَ شرير دَ روئداري دَپاره
دَ ريښتيني خطا کول په قضا کښ
ښه نه دي
۶ دَ جاهل شونډي په جگړي کښ
دخل کوي
او خوله يئ ښپيړي غواړي
۷ خوله دَ جاهل دَده هلاکونکي دَه
او شونډي يئ دَ ځان دَپاره دام
دي
۸ دَ چغلي خور خبري دَ لذتناکي نوړئ
په شان دي
او دغه دننه په کيډي کښ ننوزي
۹ هم داسي هغه چه په خپل کار
کښ سستي کوي
دَ بدخرڅه ورور دئ
۱۰ دَ خداوند نوم مضبوط برج دئ
ريښتيني ور زغلي او پناه مومي
۱۱ دَ دولتمند دولت دَ هغه محکم
ښهر دئ
او دَده په فکر کښ دَ اوچت
ديوال په شان
۱۲ له ماتولي نه وړاندِ دَ سړي
زړه کبرجني کوي
او له عزّتَ وړاندِ خاکساري دَه
۱۳ هغه چه دَ خبري له آوريدلو
وړاندِ ځواب ورکوي
دَ هغه احمقي او شرمندگي دَه
۱۴ دَ سړي روح دَ خپل رنځ زغم کوي
ليکن مات شوي زړه به څوک
و زغمي
۱۵ دَ فهمدار زړه معرفت حاصلوي
او دَ داناياتو غوږونه علم غواړي
۱۶ دَ سړي هديه ده لره کشادگي
ورکوي
او دَ غټانو حضور ته رهنمائي کوي
۱۷ هغه چه په ورنبي غرض راځي
حقدار دَئ

نو دَده ملګري به راشي او پوښتنه
به ئي وکړي
۱۸ هُسک جګړي موقوفوي
او دَ قوتناکو په منځ کښ فيصلي
کوي
۱۹ تقصيروار ورور له محکمه ښهرَ
زيات مشکل دي
او جګړي لکه اړم دَ قلعي
۲۰ دَ اِنسان دَ خولي له ميوي نه
دَده ګيډه ډکيږي
دَده دَ شونډو له ګټي نه موړ
کيږي
۲۱ مرګ او ژوند دَ ژبي په لاس
کښ دي
او دَده ياران به دَده ميوه وخوري
۲۲ هغه څوک چه ارتينه مومي خير
مومي
او له خداوندَ رضا مومي
۲۳ خوار به زاريو سره خبري کوي
او دولتمند سخت ځواب ورکوي
۲۴ ډير دوستانو وال خپل ځان خرابوي
ليکن داسي يار مونده کيږي چه له
ورور نه زيات ورپوري نښتي وي

## نولسم باب

۱ هغه خوار چه به خپل کمال سره ځي
له کږو شونډو نه بهتر دي چه
جاهل وي
۲ دا هم چه هستي دَ ځان بي له
معرفتَ ښه نه دَه
او چه په پښو بيړه کوي هغه
خطا کيږي
۳ احمقي دَ سړي دَده لاري کږي کوي
او دَ خداوند په خلاف دَ هغه
زړه چغي وهي
۴ دَ دولتمند دوستان ډير وي
ليکن خوار له خپل خويش نه
جدا دي
۵ دروغژن شاهد به بي سزا نه شي
او چه په دروغو خبري کوي خلاص
به نه شي
۶ ډير دَ اشراف رويداري کوي
او ټول دَده دوستان دي چه
بخشش ورکوي
۷ ټول ورونړه دَ خوار له ده سره
کينه کوي
نو لا څومره زيات به دوستان
دَده ورنه وتښتي
هغه ورپسي په خبرو سره ځي
ليکن دوي تلي دي
۸ هغه چه حکمت حاصل کوي په خپل

خان مينه كوي
هغه چه فهم ساتي خير به مومي
۹ دَ دروغو شاهد به بي سزا نه شي
او هغه چه دَ دروغو خبري كوي
هلاک به شي
۱۰ پناز لوئيدل له جاهل سره لايق
نه دي
نو لا خومره زيات چه سريي په
سردارانو حكم كوي
۱۱ هوښيارتيا دَ سړي دَده غصّه
صبروي
او ښائيست دَده له تقصير نه
تيريدنه دَه
۱۲ دَ بادشاه غضب دَ زمري دَ غرا
په شان دَي
او دَده رضا لكه شبنم په واښو
باندي
۱۳ جاهل خوي په خپل پلار باندِ
مصيبت دي
او جګړي دَ ښځي لكه دَ پي درپي
څڅيدل دِي
۱۴ كور او دولت يو ميراث دَي له
پلارونو
ليكن فهماره ښځه له خداوندَ
۱۵ سُستِي چه دَه په درانه خوب

كښې آچوِي
او كاهلِي كونكي خان لوږي تيروِي
۱۶ هغه چه حكم ساتي خپل خان
ساتِي
او چه له خپلو لارو غافل دَي
مرِ به شِي
۱۷ هغه چه په خوارو رحم كوِي
خداوند ته پور وركوِي
او دَ ده نيک خوي به ور ادا كړي
۱۸ خپل خوي ته آدب وركوه څكه
چه په دغه كښې اميد دَي
ليكن دَ هغه په وژلو خپل
خان مه لګوه
۱۹ سخت غضبناک په خپله تاوان
مومِي
څكه چه كه ته هغه خلاص كړي
بيا به ئي وركړي
۲۰ مصلحت واوره او آدب قبول كړه
تا چه ته په خپل آخر كښې دانا
شي
۲۱ دَ اِنسان په زړه ډير فكرونه دِي
ليكن مصلحت دَ خداوند به
ټينګ پاتي شِي
۲۲ زينت دَ سړي دَده مهرباني دَه
او خوار له دروغژن نه بهتر دَي

۲۳ دَ خداوند ویره دَ ژوندانه دَپاره ده
پهٔ سوړتیا به شپه تیروي
پهٔ شرارت سره به يې بازخواست ونه کړې شي
۲۴ سست سړی پهٔ تالکي لاس پټوي
او خولې ته يې نه کرزوي
۲۵ مسخرې کونکي ووهه نو ساده به زیرک شي
او پوهان و ترټه نو پهٔ معرفت به پوه شي
۲۶ هغه چه پلار خپل خرابوي او خپله مور شړي
هغه شرمونکي او خجل کونکي خوي دَی
۲۷ اي ځويه دَ هغه تعليم له آوريدلو بېرته شه
چه دَ معرفت له خبرو ګمراه کونکي وي
۲۸ بلبعل شاهد پهٔ عدالت مسخرې کوي
او خوله دَ شریرانو بدکاري نغړي
۲۹ دَ مسخرې کونکو دَپاره عدالت مقرّر دَی
او دَ جاهلانو دَ شا دَپاره وهل

## شلم باب

۱ شراب ټوقې کونکي دي او نشه غصّه کونکې
او چه پهٔ دغو دوارو کیف کوي هغه دانا نه دَی
۲ دهشت دَ بادشاه لکه غرّا دَ زمري
هغه څوک چه يې پهٔ غصّه کړي له خپل ځان سره بد کوي
۳ دَ سړي عزّت دا دَی چه له جګړو لري شي
او هر احمق جنګ کوي
۴ سُست دَ ژمي پهٔ سبب کرکونه نه وهي
نو پهٔ لو کښې به درویزه کوي او نه به ورکیږي
۵ مصلحت دَ سړي پهٔ زړه کښې ژوري اوبه دي
او هوښیار فهمدار سړی ورنه را وباسي
۶ ډیر سړي هریو پهٔ نېکئ خپلې ناري کوي
لیکن امانتدار سړی به څوک وموي
۷ صادق پهٔ خپل کمال کرزي

او ورستو دَده ځامنو ته خوشحالي

٨ هغه بادشاه چه دَ عدالت په تخت کښيني
نوله بدي په خپلو سترګو سره لري کوي

٩ څوک ويلي شي چه ما خپل زړه پاک کړي دَي
زه له خپلي ګناه نه پاکيزه شوي يم

١٠ بيل بيل تولونه او بيل بيل اوړي
له دغو دواړو دَ خداوند نفرت دَي

١١ هلک هم په خپلو کارونو پيژندلي شي
چه دَده کار پاک او راست دَي که نه

١٢ غوږونه آوريدونکي او سترګي ليدونکي دي
خداوند دغه دواړه جوړ کړي دي

١٣ په خوب مينه مه کوه هسي نه وي چه خوار شي
خپلي سترګي پرانزه نو په ډوډيَ به موړ شي

١٤ پيرودونکي وايي چه دا ناکاره دَي ناکاره دَي
او چه لار شي نو هغه وقت فخر کوي

١٥ سره زر شته او لالونه ډير
ليکن دَ معرفت شونډي ګرانبها کالي دي

١٦ دَ هغه جامي واخله څکه چه دَ بيګانه ضامن دَي
او دَ پردو ډپاره له ده نه ګرو واخله

١٧ دَ دروغو ډوډيَ سړي ته لذتناکه دَه
او بيا يُ خوله له ګټو ډکه وي

١٨ مرادونه په مصلحت سره قايم کيږي
او په ښه تدبيرونو سره جنګ کوه

١٩ چغلي خور په دروغو رازونه فاش کوي
نو نه په پرانتلو شونډو صحبت مه ورسره کوه

٢٠ هغه چه په خپل پلار او مور لعنت کوي
په تکي توري تياري کښ به يُ چراغ مړ کړي شي

٢١ وراثت په اول کښ په جلتيَ سره کيږي

لیکن آخر ئې مبارک نه وِي
۲۲ نه مه وایه چه زه به د بدئ بدله واخلم
ته خداوند ته انتظار کوه هغه به دِ خلاص کړِي
۲۳ له بیلو بیلو تولونو نه د خداوند نفرت دی
او د تکئ تلي ښې نه دِي
۲۴ د سړِي پلونه له خداونده ثابت دِي
لیکن اِنسان به څرنګ خپله لار وپېژني
۲۵ هغه د سړِي د پاره دام دي چه هسې ووایي چه دا مقدس دی
او بس د نذر له منلو پوښتنه وکړِي
۲۶ دانا بادشاه شریران تار په تار کوِي
او په هغو به څېر وګرزوِي
۲۷ د سړِي ځان د خداوند چراغ دی
چه د کیدې ټول اندرونِي حال معلوموِي
۲۸ رحمت او حق بادشاه ساتي
او د ده تخت په رحم سره ثابتیږي
۲۹ فخر د ځوانانو د دوي په قوت دی
او ښائست د زړونو سپینه ږیره
۳۰ د پرهر زخم شریر پاکوِي
او ترټنه دننه کیدِه صافوِي ❊

## یوویشتم باب

۱ زړه د بادشاه د خداوند په لاس کښ لکه لښتي د اوبو
چرته چه غواړِي ګرزوِي ئې
۲ ټولي لاري د اِنسان د ده په سترګو کښ راستي دِي
لیکن خداوند د زړونو تلونکی دی
۳ د صداقت او د عدالت کار
د خداوند په نزد له ذبحي نه بهتر دی
۴ اوچتوالي د سترګو او پرسول د زړه
نُور د شریرانو خطا ده
۵ فکرونه د محنتي کشادګئ له دِي
او ټول تلوار کونکي خوارئ له
۶ جمع کول د خزانو په دروغژنئ ژبې
زنګیدلې‌شوي بخار دی طالبانو د مرګ له
۷ د شریرانو شوق کول به دوي وجارباسي

ښکه چه دوي دَ عدل له جارِي کولو
انکار کوِي
۸ دَ شر لرلِي سړِي لار ډيره کږه دَه
ليکن پاک چه دَي کار ئي راست دَي
۹ دَ بام په گوټ کښې اوسيدل ښه دِي
له جنگيالۍ ښځې سره په ارت کور
کښې
۱۰ دَ شرير ځان شرارت غواړِي
دَده گواندِي دَده په سترگو کښې
نعمت موندلي نه شِي
۱۱ چه توقمار سزا مومِي نو ساده
دانا کيږِي
او دانا په تعليم کولو سره پوهه
مومِي
۱۲ صادق دَ شرير کور ته غور کوِي
شريران په شرارت کښې اوړِي
۱۳ هغه څوک چه دَ مسکين له نارِي
نه غوږ بندوِي
دي به هم نارِي وکړِي او وا به نه
وريدلي شِي
۱۴ هديه ورکول په پټه کښې غُصّه
سړه کوِي
او رشوت په غيږ کښې سخت قهر
سوړ کوِي
۱۵ جارِي کول دَ عدالت رښتنِيْ لره

خوشحالِي دَه
او بدکارانو لره هلاکت
۱۶ هغه سړِيْ چه له لارِي دَ فهم
گُمراه شِي
دَ رفائم دَ ټولِي په مينځ کښې به
و اوسِي
۱۷ دَ خوشحالئِ مينه دار سړَي به محتاج
شِي
هغه چه په شرابو او په غوړو
مينه دار وِي دولتمند به نه شِي
۱۸ شرير دَ رښتنو فديه دَي
او دَ راستانو په ځاي ټگ
۱۹ په صحرا کښې اوسيدل
له جگړالُو او غُصّه ناکي ښځي سره
بهتر دِي
۲۰ خزانه دَ دانايانو په کور کښې دلپسند
او تيل دِي
ليکن جاهل سړَي ئي ونغړِي
۲۱ هغه چه دَ صداقت او دَ رحمت
پيرو دِي
ژوندون او صداقت او عزّت مومِي
۲۲ دانا سړَي دَ زبردستو په ښهر
خيژِي
او دَ هغه دَ توکّل قوّت پرزوِي
۲۳ هغه څوک چه خپله خوله او ژبه

ساتي
خپل ثان له تنكسو نه ساتي
۲۴ مغرور او كبرجن تُوقمار دَ هغه نُوم دي
چه دَ كبرجنئ په پارسوب كار كوي
۲۵ دَ سُست سړي آرزو هغه وژني
ثكه چه دَده لاس له محنت كولو انكار كوي
۲۶ هغه هره ورځ په آرزو سره آرزو كوي
ليكن رشتني وركوي او نه ئي بُخل اَخلي
۲۷ دَ شرير ذبيحه نفرتي دَه
لا څومره زياته هغه وقت چه په بدنيتئ سره ئي راوړي
۲۸ دَ دروغو شاهد به هلاك شي
او آوريدونكئ سړئ مدام خبري كوي
۲۹ شرير خپل مخ شوخ كوي
ليكن راستمند خپله لار ثابته كوي
۳۰ نه دانائي دَه نه فهم
نه مصلحت دَي دَ خداوند په مخ كښ
۳۱ آس دَ جنګ دَ ورځي دَپاره تيار دَي
ليكن بري له خداوند دَي ❊

## دوه ويشتم باب

۱ نُوم له لويه دولته غوره دي
او نيك نعمت له سپينو او سرو زرو نه
۲ دولتمند او خوار سره پيوسته كيږي
دَ دواړو صانع خداوند دي
۳ زيرك سړئ بدي ويني نو پټ شي
او ساده تيريږي او جريمانه مومي
۴ ثواب دَ حليمي او ويره دَ خداوند
دولت او عزّت او ژوندون دَي
۵ دَ كاږه په لار كښ اغزي او لُومي دِي
هر څوك چه ثان ساتي له دغو به لري شي
۶ هلك ته دَده دَ لاري تربيت كوه
نو هركله چه زوړ شي له دغي به وا نه وړي
۷ دولتمند په خوار باندِ حكم كوي
او پوروړي دَ پور وركونكي مريي دَي
۸ دَ بديُ كرونكي به آفت و ريبي
او دَده دَ قهر همسا به وركه شي
۹ هغه چه سترګي ئي نيكي دِي بركت به مومي

ځکه چه دَي له خپلي ډوډيَ
خوارانو ته ورکوي
۱۰ نو قمار وشړه نو جګړي به ووزي
اوفساد اوشرمندګي به ورک شي
۱۱ هغه څوک چه د زړه په پاکيَ مينه
کوي : دَده دَ شونډو دفضل په
سبب بادشاه به يَ دوست وي
۱۲ دخداوند سترګي معرفت ساتي
اود ټګانو خبري اړوي
۱۳ کاهل وايي چه زمري باهر دَيَ
زه به په کوڅو کښي ووژلي شم
۱۴ د پردو ښځو خولي ژور ډوغل
دَيَ : غضب شوي دخداوند به
۱۵ په کښي پريوزي ۞ ۱۵ جاهل د
هلک په زړه پوري تړلي ده : د
نصيحت همسا به يَ ورنه لري
۱۶ کړي ۞ ۱۶ هغه چه دخپل ډيروالي
دپاره په خوار ظلم کوي : او چه
دولتمند ته ورکړي محتاجَ ته
۱۷ ورځي ۞ ۱۷ خپل غوږ ونو ټيټ
کړه او د دانايانو کلام واوره
اوخپل زړه زما معرفت ته
متوجّه کړه
۱۸ ځکه چه دا ښه دي که په خپلي
ګيډي کښي يَ وساتي
چه ستا په شونډو يو ځاي

ثابت شي
۱۹ ستا توکّل دِ په خداوند وي
ما نن ورځ تا ته وښيل
۲۰ ما تا ته اشرافي خبري
دَ مصلحت او د معرفت دَپاره
ليکلي نه دي ځه ؟
۲۱ تا چه زه دَ حق کلام حقيقت
در وښيم : تا چه حق ثواب
ورکړي هغوي ته چه ته يَ
استولي يي
۲۲ ته خوار مه لوټوه ځکه چه
خوار دَيَ : او مسکين په
دروازي کښي مه ټکوه
۲۳ ځکه چه خداوند به دَدوي
دعوي ثابته کړي : او دَ دوي
دځانونو شوکوونکي به وشوکوي
۲۴ له غضبناکو سره دوستي مه کوه
او له قهرناک سړي سره مه ځه
۲۵ هسي نه وي چه ته دده روّشونه
زده کړي : او خپل ځان په
۲۶ دام کښي ګرفتار کړي ۞ ۲۶ ته د
ورغوي له وهونکو مه شه : او نه د
پورونو له ضامنو
۲۷ که تا څخه دومبره نه وي چه ور
يَ کړي نو ولي دِ ستا بچاونړه ستا
۲۸ له لاندي واخلي ۞ ۲۸ ته هغه ورانډني

بريد مه لري کوه
چه ستا پلرونو ينبي دِي
۲۹ نه يو سرِيَ په خپل کار کښِ
محنتِي وينِي
هغه دَ بادشاهانو دَ وراندِ ودريږِي
دَ کمينهٔ دَ وراندِ به ونه دريږِي

# درويشتم باب

۱ هرکله چه ته کښيني او له حاکم
سره خوراک کوي
نو فکر وکړه چه ستا دَ وراندِ
څوک دِيَ
۲ که ته حريص يې
نو به خپلي غاړي دِ چاړه کيښودله
۳ نه دَ هغه مزِه دار خوراک مه غواړه
ځکه چه هغه دَ دروغو ډوډيِ دَه
۴ دَ دولتمند کيدلو دَپاره خوارِي
مه کوه
له خپلي هوښياريِ راستون شه
۵ نه به خپلي سترګي دَ هغه په
لورِي وغړوي چه نشته
ځکه چه هغه به دَ ځان دَپاره
وزر جوړ کړِي
لکه عقاب به آسمان ته والوزِي

۶ نه ډوډيِ دَ سترګووال شرير
مه خوره
او دَ هغه دَ مزه‌دارو آرزو
مه کوه
۷ ځکه لکه په ځان زړه کښ خيال
کوِي هم هسي هغه دَي
تا ته وايِي خوره او څښه او زړه
ئې در سره نه وِي
۸ هغه نوړيِ چه تا خوړلي دَه
و به ئې جارباسي
او تا به په خوږو خبرو زيانوِي
۹ دَ جاهل په غوږونو کښ خبرِي
مه کوه
ځکه چه دَي به ستا دَ داناييِ
خبره سپکه کړِي
۱۰ نه وراندنۍ بريد مه لري کوه
او دَ يتيمانو په پټو کښ مه ننوزه
۱۱ ځکه چه دَ هغه فديه وال قوتناک
دَي
هغه به دَ دوي دعوي په تا
ثابته کړِي
۱۲ خپل زړه ادب ته متوجّه کړه
او خپل غوږونه دَ معرفت
خبرو ته
۱۳ ادب زده کول له هلک نه مه

منع کوه
ځکه چه که ته هغه په همسا
ووهې مړ به نه شي
۱۴ ته به هغه په همسا ووهې
او ځان به ئې له دوزخ نه خلاص
کړې
۱۵ اې ځويه که ستا زړه دانا وي
څما زړه به هم خوشحال شي
۱۶ او هرکله چه ستا شونډې په
راستيو خبرې کوي
نو څما پښتورګي به خورم شي
۱۷ ستا زړه دې په خطاکارانو حسد
و نه کړي
بلکه ټوله ورځ دَ خداوند په ويره
کښ شه
۱۸ ځکه چه ثواب ضرور دې
او ستا اميد به پريکړې نه شي
۱۹ اې څما ځويه واوره او دانا شه
او دَ خپل زړه په لارې کښ
رهبري کوه
۲۰ دَ شراب خورو په مينځ کښ
مه شه
نه دَ غوښو حرصناکو خورونکو
په مينځ کښ
۲۱ ځکه چه نشه خور او ګيډه ور به
خوار شي
او خوب به چيړې ورواغوندوي
۲۲ دَ خپل پلار خبره چه ته ئې
زيږولې يې واوره
او خپله مور دې چه زړه شي
سپکه مه ګڼړه
۲۳ حق وپيره او مه ئې خرڅوه
او دانائي او ادب او فهم
۲۴ دَ رښتني پلار په خورمئ سره
خورمي کوه
او هغه چه دانا زوې وزيږوې
پرې خوشحال به شي
۲۵ ستا مور او پلار دې خوښي وکړي
او هغه چه ته ئې وزيږولې خورمي
دې وکړي
۲۶ اې څما ځويه خپل زړه ما ته
راکړه
او ستا سترګې دې څما لارې خوښې
کړي
۲۷ ځکه چه زانيه يو ژور دوغل دې
او پردئ تنګ کوهې دې
۲۸ دغه لکه غل پسونې کوي
او په سړيو کښ تکان زياتوي
۲۹ چا لره ارمان دې؟ او چا لره کمبختي
ده؟ چا لره جګړې دي

چا لره بي سببَ پرهارونه دِي او
چا لره سرخي دَ سترگو دَه
۳۰ هغو لره چه په تر ډیره شراب
خوري کوِي
هغوِي چه دَ کډودو شرابو په
طلب کښ ننوزِي
۳۱ شرابو ته مه گوره هرکله چه
سره شِي
او چه څکونه په کاسي کښ ظاهر
کړِي او په پستوالي په ستوني کښ
چلوِي
۳۲ نو به آخر کښ لکه مار چیچل کوِي
او لکه افعِي تک وهل کوِي
۳۳ ستا سترگي به پردو ته نظر وکړِي
او زړه به دِ په کږو خبرو ویل
کوِي
۳۴ او ته به داسي شي لکه دَ قهر
دریاب په منځ کښ ملاست
او یا لکه دَ جهاز دَ ستني په
سر ملاست
۳۵ وایِي به چه هغو ووهلم او خوږ
نه شوم
زه یِي وټکولم او وِم نه پیژاند
کله به زه بیدار شم بیا به
یِي ولټوم +

# څلورویشتم باب

۱ دَ شرارت له کسانو سره کینه
مه کوه
او آرزو مه کوه چه ته ورسره
شي
۲ چه دَ دوي زړه په شوکولو غور
کوِي
او دَ دوي شونډي دَ آزار خبري
کوِي
۳ په دانایِي سره کور آباد کیږِي
او په فهم سره ثابت کیږِي
۴ او په معرفت سره خجري
له ښائسته او له گران بها دولت
نه ډکیږِي
۵ دانا سړِي زور اور دَي
او دَ معرفت خاوند قوّت زیاتوِي
۶ څکه چه ته به په تدبیرونو
سره جنگ وکړِي
او دَ مشیرانو په کثرت سره
خلاصي ده
۷ دانایِي له احمق نه اوچته دَه
هغه به په دروازي کښ خوله
نه پرانزي
۸ هغه چه دَ شرارت په کار کښ

فکر کوِي
خاوند دَ تِکیِ بللي شِي
۹ دَ احمقیِ فکر خطا دَيَ
او مسخرِي کونکي دَ سړو زښت
دَيَ
۱۰ که ته دَ تنکسي په ورځ کښ
سُست شي
نو ستا قوت تنک دَيَ
۱۱ هغوي چه مرګ ته بيولي دِي
خلاص يُي کړه
او چه قتل ته راکاږلو ته تيار
دِي و يُي نيسه
۱۲ که ته ووايي ګوره مادا نه پیژانده
نو هغه چه دَ زړونو تلونکي دَيَ
نه پوهيږِي څه ؟
او ستا دَ ځان نګهبان نه پيژنِي څه
نو سړِي ته به دَده دَ کار په شان
ور و نه ګرزوِي څه ؟
۱۳ اي زويه شهد وخوره ځکه چه
دغه ښه دِي
او څاڅِکي دَ شهدو ستا په
ستوني کښ خواږه دِي
۱۴ دا هسي پيژندل دَ حکمت ستا
دَ ځان دَپاره دِي
چه تا موندلي دَيَ نو ثواب به يُي
ضرور وِي او ستا اميد به
پريکړِي نه شِي
۱۵ اي شريرَ دَ رښتيني مسکن ته
پسوني مه کوه
ته يُي شپول مه خرابوه
۱۶ ځکه چه رښتِني به اوه واره
پريوزِي او پورته به شِي
ليکن شريران په شرارت تيندک
خوري
۱۷ ته دَ دښمن په پريوتلو خوښي
مه کوه
او چه هغه تيندک وخوري نو
زړه مه خوښوه
۱۸ هسي نه خداوند يُي ووينِي
او دغه دَده په سترګو کښ بد
وِي او خپل غضب ورنه واړوي
۱۹ ته له شريرانو مه سوځه
او په بدکارانو کينه مه کوه
۲۰ ځکه چه شريرانو لره به ثواب
نه وِي
دَ شريرانو چراغ به مړ شِي
۲۱ اي ځويه له خداونده او له بادشاه
وويريږه
او له بد ليدونکو سره محبّت
مه کوه

۲۲ ځکه چه دَ دوي بلا به ناڅاپه
پاڅي
او دَ هغو دواړو په بلا څوک خبر
دَي
۲۳ دا هم حاکمانو لره دَه
په حکم کښې روي دارِي کول ښه
نه دِي
۲۴ هغه چه شرير ته وائي چه ته
رښتني يي
عام خلق به لعنت پرِ وکړِي او
ټولِي به ترِ نفرت وکړِي
۲۵ او هغوي ته چه تنبيه ورکوي
خوښي به ئې وِي
او بهتر برکت به پرِ راشي
۲۶ هغه چه په راستي خبرې ځواب
ورکوِي
شونډي بښکلوِي
۲۷ خپل کار په بهر کښې تيار کړه
او په خپل پټي کښې ئې درست
کړه بيا خپل کور جوړ کړه
۲۸ ته په خپل خويش بي سببَ
مه شاهد کيږه
ته په خپلو شونډو تګي مه کوه
۲۹ ته مه وايه چه زه به له هغه
سره داسې وکړم لکه چه له
ما سره ئې کړِي دِي
زه به سړِي ته دَده دَ عمل په
شان ور وګرځوم
۳۰ زه دَ سُست په پټي تير شوم
او دَ کم فهمَ سړِي په تاکستان
۳۱ او ګوره چه هغه ټول له اغزکيو
ډک وُو
او مخ ئې له جلبنګونو پټ وه
او دَ کاڼړو ديوال ئې نړيدلي وه
۳۲ بيا مِ وکتل او په زړه کښې مِ
غور وکړ
هغه مِ وليد او تعليم مِ ترِ واخست
۳۳ لږ څه خوب بيا لږ پړنا کيدل
او لږ څه لاسونه نغښتل دَ
ځملاستو دَپاره
۳۴ نو ستا خوارِي لکه غل
او ستا محتاجِي به لکه برګيالیَ
راشي *

## پنځه ويشتم باب

۱ دا هم متلونه دَ سليمان دِي چه
دَ خزقياه بادشاه سړو نقل کړل
۲ جلال دَ الله دَ خبري پټول دِي

او جلال دَ بادشاهانو دَ خبري
لټول
٣ آسمان بلندي لري او زمکه ژوروالي
لري
او زړونه دَ بادشاهانو معلوميدلي
نه شي
٤ خِيري له سپينو زرو لري کړه
نو کاريګر له به لوښي وخيژي
٥ شرير دَ بادشاه له حضورَ لري
کړه
نو دَده تخت به په عدل سره
ټينګ شي
٦ ته دَ بادشاه دَ وړاندِ فخر مه
کوه
او دَ غټانو په مکان مه ودريږه
٧ ښکه چه دا بهتره دَه چه تا ته
وويلي شي چه دلته را وخيژه
له هغه نه چه ته کوز کړي شي
په حِضور دَ هغه امير کښ
چه ستا سترګو وليد
٨ په بيړه سره جنګ ته مه وزه
ښکه چه ته به په آخر کښ څه
وکړي
هرکله چه خپل همسايه ذليل کړي

٩ خپله دعوي له خپل همسايه سره
ثابته کړه
او بل څوک په خپل راز مه خبروه
١٠ هسي نه وِي چه آوريدونکي دِ
رسوا کړي
نو ستا رسوايي به لري نه شي
١١ خبره ويلي شوي په خپلَ وقت کښ
دَ سرو زرو منړه دَ سپينو زرو
په ټوکريِ کښ دَه
١٢ دَ سرو زرو واليِ او کالِي دَ
خالصو زرو
ترټونکي دانا ديَ دَ اوريدونکي غوږونو
لره
١٣ لکه ساړه دَ واوري دَ لَو په
وقت کښ
هغه امانتدار قاصد ديَ خپلو
استونکو لره
ښکه چه دَي دَ خپلو
خاوندانو ځان ورسنوِي
١٤ اوريځ او باد بي بارانه
هغه فخر کونکي سړي دَي له
دروغژني هديي سره
١٥ دَ غضب په زغملو قاضِي راضِي
کيږِي
او نرمه ژبه هډوکِي ماتوِي

۱۶ چه تا ګبینه بیاموند نو هومره
خوره چه درله بس وِي
هسي نه وِي چه یک شي اووئ
جارباسي
۱۷ خپلي پښي دَ خپل همسایه په کور
کښږ درنې کړه
هسي نه وِي چه له تانه خپه
شِي او کینه درسره وکړِي
۱۸ پلک او تُوره او تیره غشي هغه
سړِي دَي
چه خپل همسایه ته په دروغي
شاهديِ سره ځواب ورکوِي
۱۹ مات غاښ او وکښلي پښي هغه
توکل دَي
په دروغژن باندِ دَ تنګسيِ په
وقت کښږ
۲۰ لکه وکښل دَجامي دَ ساړه په
ورځي کښږ لکه سرکه په شوري
داسي دِي څوک چه غمجن زړه ته
سندري وايِي
۲۱ که ستا دُښمن وږي شِي نو
ډوډيِ پرِ وخوروه
او که تږي وِي نو اوبه پرِي
وڅښنوه
۲۲ نو ته به دَ هغه په سر سکروټي
جمعَ کړِي
او خداوند به ثواب درکړِي
۲۳ شمالِي باد باران شړِي
او ترش مخ عیب لګونکي ژبه
۲۴ دَ چت په کُنج کښږ اوسیدل
بهتر دِي
له جنګیالۍِ ښځيِ سره په ارت
کور کښږ
۲۵ سړي اوبه دَ تږِي دَ ځان دَپاره
لکه ښه خبر له لري ملک نه
۲۶ رښتني دَ شریر دَ وړاندي چه
تِیتیږِي
لکه خړه چشمه سخا چینه دَه
۲۷ دَ ډیر ګبینه خوراک ښه نه دَي
لیکن لټونه دَ درنو خبرو دَ سړِي
جلال دَي
۲۸ نړیدلي ښهر بي دیوالَ
هغه سړَي دَي چه په خپل روح
واک نه لرِي *

## شپږ ویشتم باب

۱ لکه چه په اوړِي کښږ واوره او
لکه باران په لَو کښږ
هم هسي عزّت له جاهل سره
لایق نه دَي.

۲ لکه چرچڼړه تښتېدلو لره او لکه
ټوټکري الوتلو لره
هم هسې بې سببه لعنت نه راځي
۳ دَ آس دَپاره کروړه او دَ خره
دَپاره ملوني
او سوټئ دَ جاهلانو دَ شا
دَپاره
۴ جاهل ته دَ ده دَ احمقۍ په شان
ځواب مه ورکوه
هسې نه وي چه ته هم دَ هغه
په شان شې
۵ جاهل ته دَ ده دَ احمقۍ په شان
ځواب ورکوه
هسې نه وي چه هغه په خپلو
سترګو کښې خپل ځان دانا ګڼړي
۶ هغه چه دَ جاهل په لاس پيغام
آستوي
خپلې پښې پرېکوي او نقصان
ځښې
۷ لکه دَ ګډ لينګي چه لليږي
هم هسې دَ جاهل په خولې کښې
مثال دې
۸ لکه دَ ګران بها کاڼړو همياڼۍ دَ
کاڼړو په ډيرۍ کښې
هم هسې عزت ورکول جاهل لره

۹ پورته کړي اغزي په لاس دَ بېخوده
کښې
هسې دې لکه مثال دَ جاهل
په خولې کښې
۱۰ ويشتونکي چه ټول ځيرې
هم هسې هغه ځوک دې چه جاهل
ته اجاره ورکوي او تيرېدونکي
ته اجاره
۱۱ لکه چه سپې خپل قي ته ورګرزي
هم هسې جاهل خپلې احمقۍ ته
۱۲ ته هغه سړې وينې چه په خپلو
سترګو کښې دانا دې
نو اميد کول جاهل ته دَدغه له
اميد نه ډير ښه دې
۱۳ سُست وايي چه په لارې کښې
زمرې دې
او ځوان زمري په کوڅو کښې
۱۴ دروازه په خپل چور باندې ګرزي
او سُست په خپلې بچاوڼې باندې
۱۵ سُست خپل لاس په تالي کښې
ډوب کوي
او دائې سترې کوي چه خولې ته
ئې را وګرزوي
۱۶ سُست په خپلو سترګو کښې خپل
ځان زيات دانا ګڼړي

له اوه څواب ورکونکو په عقل
سره
۱۷ هغه چه تيرېږي او پردي جنجال
په خپل ځان تيروِي
لکه چه دَ سپي غوږونه نيسِي
۱۸ دَ هغه ليوني په شان چه سوځي
او غشِي او مرګ ولِي
۱۹ هم هسي هغه چه خپل همسايه
ټګوِي
او وايِي چه ما درسره مسخري
نه کولي څه ؟
۲۰ چه لرګي نه وِي اور مرِي
او چرته چه چغلي خور نه وِي
جګړي ورکيږي
۲۱ سکارهِ سکروټې له او لرګي اور
له
هم هسي جګړالو سړي جګړي تازه
کولو له
۲۲ دَ چغلِي خور خبري دَ خوږي نوړئي
په شان دِي
او دوي دننه ګيډي ته کوزيږي
۲۳ دَ سپينو زرو خبري چه کودري
پري پټ شوي وِي
هسي دِي بليدونکي شونډي او
شرير زړه

۲۴ کينه-کښ په شونډو انکار
کوِي
او دننه ټګي ساتِي
۲۵ هرکله چه خپل آواز ښه کوِي
اعتبار پري مه کوه
چه دَ هغه په زړه کښ اوه
نجاستونه دِي
۲۶ اګرکه خپله کينه په مکر سره
پټوِي
نو دَ ټولِي په مينځ کښ به يُ
خيانت ظاهر شِي
۲۷ هغه څوک چه ډوغل کني په کښ
به پريوزي
او چه کاڼي رغړوِي پرِ راَ و به
ګرزِي
۲۸ دروغژنه ژبه له خپلو ژوبل کړيو
سره کينه لرِي
او خوشامدګره خوله خرابِي کوِي ❊

## اوه ويشتم باب

۱ په صبا فخر مه کوه
ځکه چه ته خبر نه يي چه ورځ
به څه وزيږوِي
۲ بل دِ ستا مدحه وکړِي نه
ستا خوله

پردي سړي نه ستا شونډي
۳ کاڼي درانه دي او شګي درني
دي
لیکن غصّه دَ جاهل له دغو
دواړو نه زیاته درنه دَه
۴ غصّه سخته ده او قهر تیز
سیلاب دَي
او څوک به دَ غضب دَ وړاندِ
ودریږي
۵ ظاهره ترټنه
له پټي میني بهتره دَه
۶ دَ دوست پرهارونه وفادار دي
او دَ دښمن ښکلول ډیر دي
۷ موړ ځان شهد لتاړوي
او وږي ځان لره هر تریخ خوږ
دَي
۸ لکه چرچڼړه له خپلي جالي آواره
هسي هغه سړَي دَي چه له خپل
ځاي نه آواره شي
۹ عطر او خوشبويي زړه خوشحالوي
او شیریني دَ دوست ځان له
مصلحت دَي
۱۰ نه خپل دوست او دَ خپل پلار
دوست مه ترکوه
او ستا دَ آفت په ورځ دَ خپل

وروړکور ته مه ننوزه
هغه نژدي همسایه له
لري ورور نه بهتر دَي
۱۱ اي زویه دانا شه او څما زړه
خوشحال کړه
نو زه به هغه ته چه ما ملامت
کوي دَ یوي خبري ځواب ورکړم
۱۲ زیرک شرارت ویني او پټ شي
او سادګان تیریږي او تاوان
مومي
۱۳ له هغه جامه واخله چه دَ
پردي ضامن شوي دي
او دَ بیګانه دَپاره ګروي ورنه
واخله
۱۴ هغه چه دَ خپل خویش مبارکي
کوي په لوړ آواز صباح وقتي
دا به هغه لره لعنت حساب شي
۱۵ پي درپي څڅوبي دَ باران په ورځ
او جنګیالۍ ښځه دواړه سره
برابر دي
۱۶ هغه چه بندګوي باد بند کوي
او دَده ښي لاس تیل را بولي
۱۷ اوسپنه په اوسپني تیره کیږي
او سړي دَ خپل دوست مخ تیره
کوي

۱۸ هغه چه دَ اِنځير خبرداري کوِي
میوه به يُ وخوري
او دَ خپل خاوند ساتونکي به
عزت ومومي
۱۹ لکه په اوبو کښې مخ له مخ سره
هم هسې دَ سړِي زړه سړي لره
۲۰ دوزخ او هلاکت نه ماړه کيږِي
او دَ سړِي سترګي نه ډکي کيږِي
۲۱ کوټالۍ سپينو زرو لره او تنور
سرو زرو لره
هم هسې سړَي دَي خپلي مدحې
لره
۲۲ که احمق له غنمو سره په بغرۍ
کښې په مولي وټکوي
دَده احمقي به ورنه لرې نه شِي
۲۳ دَ خپلو ميږو حال په پيژاندلو
سره وپيژنه
او خپل زړه په خپلو کنډکو
ولګوه
۲۴ ځکه چه دولت به مدام نه وِي
او نه تاج زماني تر زماني
۲۵ واښه ورلي کيږي او زرغونکي ټوکيږِي
او واښه دَ غرونو جمع کيږِي
۲۶ ورِي ستا دَ پوشاک دَپاره دِي
او دَ ډيري قيمت ورغومي دِي

۲۷ او پۍ دَ وزو ستا دَ خوراک دَپاره
ستا دَ کور دَ خوراک دَپاره
او ستا دَ وينځو دَ ګذران دَپاره
بس دِي ❊

## اته ويشتم باب

۱ شرير تښتي او شړونکي نه وِي
ليکن رښتيني دَ زمري په شان
ټکره دي
۲ دَ زمکي دَ تقصير په سبب يُ
سرداران ډيريږي
ليکن دَ فهم او دَ معرفت په
خاوندانو مدام وِي
۳ هغه خوار سړَي چه په نورو
خوارانو ظلم کوِي
دغه سخت باران دَي چه هيڅ
ډوډۍ نه پريږدي
۴ ترک کونکي دَ تورَيت دَ شريرانو
مدحه کوِي
او دَ تورَيت ساتونکي ورسره جګړه
کوِي
۵ شريران سړي په حق نه پوهيږي
ليکن طالبان دَ خداوند په هر څه
پوهيږي
۶ هغه خوار چه په خپلي راستۍ

ځي
له هغه دولتمند نه بهتر دَي
چه لاري کږه وِي
۷ دَ تورِيت ساتونکي پوهان ځوي
دَي
او دَ بدخرڅانو دوست خپل
پلار شرموِي
۸ هغه چه په سود او په ګټې
خپل مال ډيروِي
دَ هغه دَپاره ټولوِي چه په
مسکينانو رحم وکړي
۹ هغه چه دَ تورِيت له اَوريدلو
غوږونه ګرزوِي
دَ هغه دُعا هم نفرت ده
۱۰ هغه چه راستان په خرابۍ لاري
کښ غولوِي
نو په ډوغل کښ به دي پرېوزي
ليکن کاملان به دَ غورو
څيزونو وارثان شي
۱۱ دولتمند سړَي په خپلو سترګو
کښ دانا دَي
ليکن مسکين فهمدار ئي څار کوِي
۱۲ هرکله چه رښتني خوشحالي کوِي
نو لوي رونق وِي
او چه شريران پورته شي نو سړي

ځانونه پټوِي
۱۳ هغه څوک چه خپل تقصيرونه
پټوِي مرادمند به نه شي
او هغه چه اقرار ئي کوِي او پرېږدِي
ئي پري به رحم وشي
۱۴ خوشحالي ده هغه سړي لره چه
مدام په ځان ترسيږي
مګر سخت دله به په شر کښ
پرېوزي
۱۵ لکه غريدونکي زمري او غضبناک
يږ
هغه شرير دَي چه په خوارو
خلقو حاکم دَي
۱۶ ناقص فهم سردار هم ډير ظلم
کونکي دَي
مګر هغه چه له رشوت نه
نفرت کوِي ورځي به ئي اوږدي وِي
۱۷ هغه سړَي چه دَ چا په خون
ګران باري وِي
کوهي ته به ورو تښتي هيڅوک دِ
ئي و نه نيسي
۱۸ هغه چه په کمال سره ځي خلاص
به شي
او هغه چه په دوو لارو کښ کوږ
شوي دَي په يو وار به پرېوزي

۱۹ هغه چه په خپلي زمکي کښ مشغول
وي په ډوډئ به موړ شي
او دَ باطلانو تابعدار به په خوارئ
موړ شي
۲۰ امانتدار سړئ ډېر برکتونه لري
او چه دولتمند کيدلو ته تلوار
کوي بې سزا به نه شي
۲۱ دَ مخونو رويدارئ کول ښه نه دي
نو سړي به دَ يوي ټکړي ډوډئ
دَپاره تقصير وکړي
۲۲ دَ شريرو سترګو خاوند ګناه ته
تلوار کوي
او نه پوهيږي چه خوارئ به
ورباندِ راشي
۲۳ هغه چه دَ چا سړي ترټنه کوي
په آخر کښ به زياته ښتري له
خوشامد کونکي ژبي بيامومي
۲۴ هغه چه خپل پلار او مور
لوټوي او وايي چه تقصير نشته
هغه دَ خرابئ کونکي سړي مل
دي
۲۵ حرصناک سړئ جګړي پورته کوي
او چه په خداوند توکّل کوي
خورب به شي
۲۶ هغه چه په خپل زړه توکّل کوي
هغه جاهل دی
او هغه چه په دانائئ ځي خلاص
به شي
۲۷ هغه چه خوارانو ته ورکوي محتاج
به نه شي
او هغه چه سترګي ورنه پټوي ډېر
لعنتونه به پر وي
۲۸ هرکله چه شريران پورته کيږي
سړي پټيږي
او دَدوي په هلاکت ريښتني ډيريږي

## نه ويشتم باب

۱ هغه چه ډېره ترټنه مومي او
غاړه ورنه غړوي
ناڅاپه به مات شي او شفا به
ئي نه وي
۲ هرکله چه ريښتني زياتيږي نو
خلق خوښيږي
او چه شرير حکومت کوي خلق
هاي هاي کوي
۳ هغه چه په دانائئ مينه کوي
پلار به ئي خوښي کوي
او دَ زانيانو ملګري به مال برباد
کړي
۴ بادشاه په عدالت سره زمکه ټينګوي

او چه هدېې آخلي ویران کوي ئې
۵ هغه سړی چه دَ خپل دوست
خوشامده کوي
دَده دَ پښو دَپاره جال غوړوي
۶ دَ شریر سړي په تقصیر کښ
جال دی
لیکن صادقان به سندري وایي
او خوښي به کوي
۷ رښتیني دَ خوارانو دعوي پېژني
لیکن شریر دَ پېژندلو فهم نه لري
۸ توقماران سړي ښهر پریشان کوي
لیکن دانایان غضب ګرزوي
۹ که دانا سړی له نادان سره مقدمه
وکړي
نوکه و قهریږي یا وخاندي راحت
نه وي
۱۰ خونیان له کامل سره کینه لري
لیکن راستان چه دي دَده ځان
غواړي
۱۱ جاهل ټول غضب خپل ظاهروي
او دانائي تر آخره قرار کړي
۱۲ هغه حاکم چه دَ دروغو خبري
آوري
دَدغه ټول خدمتګاران شریران
دي

۱۳ خوار او زوراور دواړه سره
پیوسته دي
خداوند دَ دواړو سترګي روښانه
کوي
۱۴ هغه بادشاه چه خوارانو لره
په حق سره انصاف کوي
دَ هغه تخت به ترابده پوري
ثابت وي
۱۵ همسا او تنبیه دواړه دانايي
ورکوي
او هغه هلک چه خپل خواهش
ته پرېښولي شي خپله مور
شرموي
۱۶ هرکله چه شریر خاوندي کوي
سرکشي ډېریږي
لیکن رښتني به دَدوي پرېوتنه
ويني
۱۷ خپل ځوي ته آدب ورکوه نو
دَی به تا ته آرام درکړي
او ستا ځان ته به لذتونه درکړي
۱۸ چه رؤیا نه وي خلق آزادي کوي
مګر هغه چه تورېت ساتي
خوشحال دي
۱۹ په خبرو سره نوکر نه ګروهیږي
ځکه چه دَی پوهیږي او عاجزي

نه کړي

۲۰ تا به هغه چه په خپلي خبري بيړه
کوي ليدلي وي
جاهل ته اميد کول دَده له اميد
کولو نه زيات دَي

۲۱ هغه چه په خپل مريي له وړوکوالي
نه نازک ساتي
آخر کار به دَ هغه ځوي شي

۲۲ غضبناک سړَي جګړي پورته کوي
او غصّه ناک سړي ډير ګناهونه
کوي

۲۳ دَ سړي مغروري به هغه ټيټ
کړي
ليکن هغه چه ټيټ روح لري
عزّت به حاصل کړي

۲۴ هغه چه دَ غله شريکيږي له خپل
ځان سره کينه کوي
لعنت اوري او هيڅ نه وايي

۲۵ دَ سړي ويره دام ږدي
او چه په خداوند توکّل کوي سلامت
به اوسي

۲۶ ډير دي چه دَ حاکم مخ لټوي
ليکن حق دَ سړي له خداوندَ دَي

۲۷ ظالم سړَي دَ ريښتينو نفرت دي
او دَ راستي لاري تلونکي دَ شرير
نفرت دي ❖

## دیرشم باب

۱ کلام دَ اجور دَ ځوي دَ ياقه
وحي وشوه په دي سړي ايثيئيل ته
ايثيئيل ته او اکال ته

۲ زه هر سړي ته حيران يم
او زه دَ سړي په شان فهم نه لرم

۳ او نه مِ حکمت زده کړي دَي
او نه دَ قدّوس معرفت پيژنم

۴ څوک آسمان ته ختلي دَي او راکوز
شوي دَي
چا په موټيو کښ باد نيولي دَي
چا اوبه په جامه کښ تړلي دِي
چا ټول طرفونه دَ زمکي ټينګ کړي دِي
دَ هغه نُوم څه دي او دَ هغه دَ
ځوي نُوم څه دي که ته ئي پيژنې

۵ هره خبره دَ الله کرّه شوي دَه
دَ هغو دَپاره چه په ده توکّل کوونکي
دِي ډال دَي

۶ ته دده په خبرو مه زياتوه
هسي نه چه تا وترټي او ته
دروغژن شي

۷ ما له تا نه دوه سوالونه کړي دِي

ته هغه دواړه مه رانه منع کوه
وړاندِ له هغه چه زه مړ شم
۸ له مانه باطل او دروغ لري کړه
نه مانه خواري مه راکوه او نه
دولتمندي
خما مقرّره ډوډيُ رابانډِ وخوروه
۹ هسي نه چه موړ شم او کفران
وکړم او ووايم چه خداوند څوک دَیَ
او هسي نه چه خوار شم او غلا
وکړم او دَ خپل الله نوم په
باطلَ واخلم
۱۰ نه دَ مريي شکايت دَده خاوند
ته مه کوه
هسي نه وِي چه په تا لعنت وکړِي
او ته مُرم شي
۱۱ يوه پيړيُ دَه چه په خپل پلار
لعنت کوِي
او مور ته مبارکه نه وايِي
۱۲ يوه پيړيُ دَه چه خپل ځان دَده
په سترګو کښ پاک دَيَ
او ده له خپلي ګندګيُ وينځلي نه
دَيَ

۱۳ يوه پيړيُ دَه چه سترګي يُ څومره
اوچتي دِي
او پلکونه يُي پورته کړي شوِي
دِي
۱۴ يوه پيړيُ دَه چه غاښونه يُ تُوري
دِي او داړي يُ چړي دِي
دَپاره دَ خوړلو دَ مسکينانو
له زمکي اوخواران دَ سړيو له
ميانه
۱۵ دوي دَ ژوري لونړه دِي چه وايِي
راکړه راکړه
دري دِي چه نه مړيږي
څلور دِي چه نه وايِي بس
۱۶ دوزخ او رَحِم دَ شنډي
او زمکه چه په اوبو نه ډکيږي
او اور نه وايِي چه بَس
۱۷ هغه سترګي چه په خپل پلار
مسخري کوِي
او دَ خپلي مور تابعدارِي سپکه
ګڼړِي
دَ خوړي کاغي به يُ وکاږي
او دَ ګرګس بچي به يُ وخوري
۱۸ دري داسي عجائب دِي چه خما له
فکرَ پاس دِي

او څلور دي چه زه ئي نه پېژنم
۱۹ لار دَ کرګس په آسمان کښ
او لار دَ مار په پړښو کښ
او لار دَ بېړئ دَ ټهر درياب په مېنځ کښ
او لار دَ سړي له پېغلي سره
۲۰ دا هسي دزاني ښځي لار
دا خوري او خپله خوله پاکوي
او وائي چه ما ګناه کړي نه ده

۲۱ له څلورو لاندِ زمکه رپېږي
او څلور دي چه زغم ئي کيدلي نه شي
۲۲ له مريي دَ لاندِ چه بادشاه شي
او احمق چه په ډوډئ ړک شي
۲۳ له کينه‌ګرې دَ لاندِ چه په نکاح شي
او وينځه چه دَ خپلي ميرمني وارثه شي

۲۴ څلور دي چه په زمکي کښ وړوکي دي
ليکن ډير دانا دي
۲۵ ميږي يو بي قوّته خلق دي
ليکن خپل خوراک په اوړي کښ تيار وي

۲۶ شافان ضعيفه طائفه ده
ليکن خپل کورونه په پړښو کښ جوړوي
۲۷ ملخان ملک نه لري
ليکن ټول واره فرقي فرقي وزي
۲۸ سامّ شرمبنکي په خپلو لاسونو نيسي
او دغه دَ بادشاهانو په محلونو کښ وي

۲۹ دري دي چه خوش قدمه دي
او څلور دي چه خوش رفتاره دي
۳۰ زمري له ټولو وحشيانو ښاغلي دي
او دَ هيڅا له وړاندِ نه جاروزي
۳۱ تازي سپَي او وخ
او هغه بادشاه چه څوک ورسره مقابله نه شي کولي

۳۲ که تا احمقي وکړه دَ ځان په لوئي کولو سره
او که دَ بدئ فکر دِ وکه نو خپل لاس په خپلي خولي کيږده
۳۳ څکه چه دَ پيو له شاربلو نه کوچ وزي
او دَ پوزي له مړبلو نه ويني او

دَ غُصّي مرؤل جګري وباسي

## يو دېرشم باب

۱ کلام دَ لمويل بادشاه چه دَده
مور ده ته تعليم ورکړ

۲ څه دِي اي څويه او څه دِي اي
څما دَ رحم څويه
او څه دِي اي څما دَ نذرونو څويه
۳ ته خپل قوّت ښځي ته مه ورکوه
او نه خپلي لاري دَ بادشاه
هلاکونکو ته
۴ نه دِي اي لموئيلَ بادشاهانو لره
نه دِي بادشاهانو لره چه
شراب څښي
او نه غټانو له چه نشه چرته دي
۵ عسي نه وِي چه وڅښي او مقرّر
شوي هير کړي
او دَ چا خوار حجّت بدل کړي
۶ نشه هلاکيدونکي له ورکړه
او شراب تلخ ځاني له
۷ چه وڅښي او خپله خواري هيره
کړي
او بيا خپل محنت په ياد نه کړي
۸ خپله خوله دَ ګونګ دَپاره پرانزه
دَ هر يتيم په دعوي کښ
۹ خپله خوله پرانزه په عدالت
سره حکم وکړه
او دَ خوار او دَ مسکين مددګار
شه

۱۰ څوک نيکه ښځه موندلي شي
ځکه چه دَدي قيمت له مرغلرو
زيات دَي
۱۱ په دي باندي دَدي دَ مېړه
زړه پوره اعتبار لري
ګټه ته به محتاج نه شي
۱۲ ټولي ورځي دَدي دَ ژوندانه
به له ده سره نيکي کوي نه بدي
۱۳ دا اَلسي او کتان لټوي
او په راضي لاسونو کار کوي
۱۴ دا لکه جهازونه دَ سوداګرو
چه له لري خوراک راکاږي
۱۵ دغه چه لا شپه وي پورته
شي
او خپلخاني ته خوراک ورکوي
او بخره جنکو ته
۱۶ دا دَ پټي فکر کوي او پيري ئي
او دَ خپلو لاسونو په ميوي
تاکستان لګوي

۱۷ خپله ملا په قوّت تړي
او څنګلي سختي کړي
۱۸ دا پوهیږي چه دَدي سوداګري
ښه دَه
دَدي چراغ په شپي کښې
نه مړي
۱۹ دا خپل لاسونه څرخي ته
اوږدوي
او دَدي لاس دُوک نیسي
۲۰ دا خپل لاسونه خوارانو ته
غوړوي
او خپل لاسونه مسکین ته
اوږدوي
۲۱ دا دَ خپل کور دَپاره له واوري
نه ویریږي
ځکه چه دَدي ټولي خیلخاني قرمزي
جامي اغوستي دي
۲۲ دا دَ خپل ځان دَپاره نقشداري
جامي جوړوي
دَدي پوشاک مهین او ارغواني
دَي
۲۳ دَدي میړه چه په دروازو کښېني
دَ زمکي دَ بزرګانو په مینځ کښې
مشهور دَي
۲۴ دا کتاني جامي جوړوي او خرڅوي
ئي
او کمربندونه سوداګرو ته پیش
کوي
۲۵ عزّت او جلال دَدي پوشاک دَي
او په آینده زمانه پوري خاندي
۲۶ خپله خوله په دانائي پرانزي
او دَدي په ژبه دَ مهربانئ
طریقي دي
۲۷ دَ خپلي خیلخاني په لارو ښه
نظر کوي
او دَ سستئ ډوډئ نه خوري
۲۸ دَدي اولاد پاڅي او خوشحالي
پري کوي
او میړه ئي هم او مدحه ئي کوي
۲۹ ډیرو لونړو نیکي کړي دَه
لیکن ته په ټولو پاس شوي یې
۳۰ ښائیست فریب دَي او جمال
باطل دَي
لیکن دَ خداوند ویریدونکي ښځه
به وستایلي شي
۳۱ دي ته دَدي دَ لاسونو میوه
ورکړئ
او دَدي کارونه دِ په دروازو
کښې وستایلي شي ❋

# دَ واعظ کتاب

## اول باب

۱ ۱ دَ واعظ خبرې دَ داؤدِ دَ ځوي چه په اورشلیم کښ بادشاه وه
۲ ۲ دَ باطلو باطل واعظ وایي دَ باطلو باطل هر څه باطل دِي -
۳ ۳ انسان لره له هغه ټول محنت نه چه دي يُ تر نمر دَ لاندِ محنت
۴ کوي څه فائده ده ۴ یوه پیړئِ تیرېږي بله پیړئِ راځي لیکن زمکه مدام
۵ ثابته ودرېږي ۵ نمر خیژي نمر پرېوزي او خپل مکان ته چه ورنه
۶ خیژي بیړه کوي ۶ باد دَ سهیل په لورِي آلوزي او گردش وخوري
دَ قطب په لورِي مدام وڅرخېږي او بیا خپل گردشونو ته باد راگرزي
۷ ۷ ټول دریابونه و قهرِ دریاب ته وربهیږي لیکن قهرِ دریاب ډک
نه دي هغه ځاي ته چه دریابونه ورنه ووځي هم هغه ځاي ته
۸ بیرته ورځي ۸ ټولي خبري له سرټکوب ډکي دِي سړي بنوولي نه شِي
سترگي له کتلو نه آسوده کیږي او نه غوږونه له آوریدلو ډکیږي
۹ ۹ هغه چه وشول هم هغه به بیا وشِي او هغه څیزونه چه پوره
شوِي دِي هم هغه دِي چه پوره به کړي شِي او تر نمر دَ لاندي
۱۰ هیڅ نوي شئ نشته ۱۰ کوم څیز داسي شته دَي څه؟ چه دَ هغه
په باب وویلي شِي چه گوريُ دا خو نوي دَي هغه خو په وړاندِ کښ
دَ هغو زمانو په مینځ کښ چه له مونږ نه پخوا وي موجود وُو -
۱۱ ۱۱ دَ وړاندنیو یادگارِي نشته او دَ هغو چه راځي دَ هغو په مینځ
کښ چه پس له دي راځي یاد به نه شِي
۱۲ ۱۳ ۱۲ زه واعظ په اورشلیم کښ په اسرائیل بادشاه وم ۱۳ او
ما خپل زړه تیار کړ چه هر هغه څه چه تر آسمان دَ لاندِ کیږي
په دانائِي سره دَ هغو ټولو تفحص او تحقیق وکړم خداي بنِيآدم لره

۱۴ دا تول ربړ ورکړ چه دوي په دي شغل کښں لګيا اوسي ۱۴ ما تول
کارونه وليدل چه تر نمر دَ لاندِ کيږي او ګوره چه تول بطلان
۱۵ او دَ باد خوراک دَيَ ۱۵ هغه چه کاږه دِي سم کيدلي نه شِي او
۱۶ هغه چه موجود نه دِي دَ هغو حساب کول ممکن نه دِي ۱۶ ما دا
خبره په خپل زړه کښں وکړه ګوره ما ډيره لوئي وکړه او دَ هغو تولو
نه چه له ما نه وړاندِ په اورشلم کښں وُو ډير حکمت مِ زيات کړ
۱۷ هو ځما زړه حکمت او پوهه ډير وليدل ۱۷ ليکن چه ما دَ حکمت
او دَ ليونتوب او دَ جاهلئ په پوهيدلو زړه ولګاوه نو معلوم
مِ کړل چه دا هم دَ باد خوراک دَيَ ځکه چه په ډير حکمت کښں
ډير ربړ دَيَ او هغه چه علم زياتوَي غم زياتوِي *

# دويم باب

۱ ۱ ما په خپل زړه کښں وويل چه راشه که نه زه به دِ په
خوښئِ سره و آزمايم او ته به نيکي ووينې ګوره دا هم بطلان دَيَ
۲ ۲ ما دَ خندا په باب وويل ته ليونتوب او ددي خوشحالئِ په باب
۳ دا څه کوي ۳ ما په خپل زړه کښں نيّت وکړ چه خرنګ په خپله
جُسّه په شرابو خوښه کړم اوچه زړه مِ په حکمت ورل کوي
اوچه په احمقئِ ونيسم تر هغه پوري چه وويِنم چه په دي کښں
دَ بني آدم دَپارَ به څه خيز ښه وِي چه دوي دَ آسمان دَ لاندي
۴ دَ خپل ژوندانه تولي ورځي هم دغه کوِي ۴ ما خپل کار لوي کړ
ما دَ خپل ځان دَپارَ کورونه بنا کړل او ما دَ ځان دَپارَ تاکستانونه
۵ ولګول ۵ ما دَ ځان دَپارَ باغچي اوجنّتونه جوړ کړل او په هغو کښں
۶ مِ دَ هر قسم ميوه داري وني ولګولي ۶ ما دَ ځان دَپارَ دَ اوبو
تالابونه جوړ کړل چه له دغو نه دَ ګڼو بڼو وُني زرغوني شوي اوبه
۷ کړم ۷ ما مريونه او وينځي وپيرودل او خانه زاد مِ وُو زه هم دَ

ډېرو ګوهارو او دَ رمو مالک وم زيات له هغو ټولو نه چه
ځما نه وړاندِ په اورشلِم کښ وُو ۸ ما سره او سپين زر او دَ ۸
بادشاهانو او دَ وطنونو خاصي خزانې دَ ځان دَپارَ جمع کړلي ما
سندرګران او سندرګراني واخستل او خوښي دَ بنيآدم بي‌بي او
بي‌بيانې ۹ نو زه لوي شولم او دَ ټولو په نسبت چه په اورشليم ۹
کښ ځما نه وړاندِ وُو زيات شولم ځما حکمت هم په ما کښ پاتي
وه ۱۰ او هر څه چه ځما سترګو غوښتل ما له هغوي نه و نه نيولي ۱۰
ما خپل زړه له هيڅ رنګ خوښئ نه منع نه کړ ځکه چه ځما زړه ځما
له ټول محنت نه خوشحال شه او ځما له ټول محنت نه ځما بخره
هم دا وه ۱۱ پس له هغه نه ما په هغو ټولو کارونو چه ځما لاسونو ۱۱
کړي وُو او په هغه محنت باندِ چه ما ئې په کولو کښ مشقت کړي
وه نظر وکړ او ګوره چه ټول بطلان او دَ باد خوراک وه او تر نمر
دَ لاندِ هيڅ فائده نه وه
۱۲ او ما خپل ځان دَ حکمت او دَ ليونتوب او دَ جاهلئ ۱۲
وکتلو ته وګرزاوه ځکه چه هغه سړَي چه پس له بادشاهَ به راشِي
څه به کوِي ؟ هم هغه چه شوِي دِي ۱۳ او ما وليدل لکه چه ۱۳
رڼا له تاريکئ نه زياته سرفرازه دَه هم هسي حکمت له احمقئ نه
زيات سرفراز دَي ۱۴ دَ دانا سترګي دَده په سر کښ دِي ليکن احمق ۱۴
په تياري کښ ځِي په دي هم زه وپوهيدم چه هم يوه حادثه دَه چه
په هغو ټولو باندِ تيريږي ۱۵ نو ما په خپل زړه کښ وويل لکه چه ۱۵
په احمق باندِ پيښ کيږي هم هسي به په ما پيښ شِي نو زه څله
زيات دانا وم پس ما په خپل زړه کښ وويل چه دا هم بطلان
دَي ۱۶ ځکه چه نه دَ دانا او نه به دَ احمق ذکر تر ابدَ پوري وِي ۱۶
ځکه هغه چه اوس شته دَي په راتلونکو ورځو کښ به ټول هير
کړي شِي او دانا څرنګ مړ کيږي لکه چه احمق ۱۷ نو ما له ژوند سره ۱۷

کینه کوله څکه هغه کار چه دَ نمر دَ لاندِ کیږي ماته بد معلوم
شه څکه چه ټول بطلان او دَ باد خوراک دَي
۱۸ ۱۸ بلکه ما دَ خپل محنت له ټول کار نه چه دَ نمر لاندِ
مِ کړي وه کینه کوله دي دَپارَ چه زه دَ هغه سړِي دَپارَ چه
۱۹ پس له ما به وِي پرېږدم ۱۹ او څوک پوهیږي چه دانا یا احمق به وِي
نو هغه به څما دَ محنت په ټول کار باندِ چه ما وکړ او په هغه
کښ چه ما دَ نمر دَ لاندِ خپل حکمت ظاهر کړ ضابط وِي دا هم
۲۰ بطلان دَي ۲۰ نو زه وګرزیدم چه خپل زړه له هغه ټول محنت نه
۲۱ چه ما دَ نمر دَ لاندِ کړي وُه نا امید کړم ۲۱ څکه چه یو سړَی شته
چه دَ هغه محنت له حکمتَ او له دانائيَ او له کامیابئِ سره دَي
لیکن هغه به ئي دَ بل سړِي دَپارَ چه دغه په هغه کښ هیڅ محنت
کړِي نه دَي پرېږي به ئي بږدي تا چه دَ هغه بخره وِي دا هم بطلان او
۲۲ لویه بلا ده ۲۲ څکه چه سړِي لره دَده له ټول محنتَ او دَ زړه له
۲۳ مشقتَ چه ده دَ نمر دَ لاندِ کړِي دِي څه حاصل کیږي ۲۳ څکه
دَده ټولي ورځي غم دَي او دَده محنت وِیر دَي بلکه دَده زړه په
شپي کښ هم آرام نه کوِي دا هم بطلان دَي
۲۴ ۲۴ نو دَ انسان دَپارَ بي له دي نه هیڅ بهتر نشته چه دي
وخوري او وڅښي او په خپل ټول محنت کښ دَ خپل ځان خیر
۲۵ ووېني دا مِ هم ولیدل چه دا دَ الله له لاسَ دِي ۲۵ څکه چه
۲۶ له ما نه څوک زیات خوړلي شِي او څوک آخستلي شِي ۲۶ څکه چه
دَي هغه سړِي لره چه دَده په حضور ښه دَي حکمت او پوهه
او خوښي ورېخښي مګر ګنهګار ته محنت ورکوِي تا چه هغه
جمع کړِي او ډېر ئي کړِي دي دَپارَ چه هغه ته ئي ورکړِي چه
دَ الله په نظر ښه دِي دا هم بطلان او دَ باد خوراک
دَي *

# دريم باب

آ دَ هر څيز دَپارَ يو موسم دَيَ او دَ هر کار دَپارَ چه دَ آسمان ١
دَ لاندِ دَي يو وقت دَيَ ٢ دَ پيدا کيدلو دَپارَ يو وقت دَي او دَ ٢
مړکيدلو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ وني لګولو دَپارَ يو وقت دَي او دَ
لګولي شوي دَ وکښلو دَپارَ يو وقت دَي ٣ دَ وژللو دَپارَ يو وقت ٣
دَيَ او دَ جوړ کولو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ نړولو دَپارَ يو وقت دَي
او دَ بنا کولو دَپارَ يو وقت دَيَ ٤ دَ ژړيدلو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ ٤
خندا کولو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ وِير کولو دَپارَ يو وقت دَيَ او دَ
ګډيدلو دَپارَ يو وقت دَيَ ٥ دَ کاڼړو غورزولو دَپارَ يو وقت دَيَ ٥
او دَ کاڼړو ټولولو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ غيږي نيولو دَپارَ يو وقت
دَيَ او له غيږي دَ بيل کيدلو دَپارَ يو وقت دَي ٦ دَ لټولو دَپارَ ٦
يو وقت دَي او دَ ورک کولو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ ساتلو دَپارَ يو
وقت دَي – او دَ غورزولو دَپارَ يو وقت دَيَ ٧ دَ څيرلو دَپارَ يو ٧
وقت دَيَ او دَ ګنډلو دَپارَ يو وقت دَي دَ چُپ کيدلو دَپارَ يو
وقت دَيَ او دَ خبري کولو دَپارَ يو وقت دَيَ ٨ دَ ميني دَپارَ يو وقت ٨
دَيَ او دَ دښمنئِ کولو دَپارَ يو وقت دَيَ دَ جنګ دَپارَ يو وقت
دَيَ او دَ صلحي دَپارَ يو وقت دَيَ ٩ کار کونکيو لره له هغه نه ٩
چه دَيَ محنت په کښ کوِي څه حاصل دِي ١٠ ما هغه محنت وليد ١٠
چه الله بنِي آدم لره ورکړي دَيَ چه په هغه کښ مشغول وِي ١١ ده ١١
هر يو څيز په خپل موسم کښ ښائسته جوړ کړ او ده هم دَ هغه
په زړه کښ عالم ځاي نيونکي کړي دَيَ دي دَپارَ چه اِنسان
هغه کار لره چه الله له اوّل نه تر آخر پوري کړي دَيَ معلوم‌ولي
ئي نه شِي ١٢ زه پوهيږم چه هغو لره هيڅ ښيګړه نشته مګر دا ١٢
چه دوي خوشحال وِي او په خپله په خپل ژوندانه کښ نيکي وکړي

۱۳ او دا هم چه هر يو اِنسان خورِي او څښِي او دَ ټول محنت خپل
۱۴ فائده مومِي نو دا هم دَ خداي بخشش دَي ۱۴ او زه پوهيږم چه
هر څه چه الله کوِی دَ هميشه دَپارَ وِي په هغه کښ هيڅ څيز
زيات کيدلي نه شِي او نه له هغه نه څه څيز کم کيږِي او الله
۱۵ داسي کار کوِي چه خلق دَده په حِضور وويريږِي ۱۵ هر څه چه شوِي
وُو اوس هم دِي او هر څه چه کيدونکي دِي هغه وړاندِ هم شوِي
وه او الله دَ تير شوِي حال لټول کوِي
۱٦ ۱٦ بيا مِ دَ نمر دَ لاندِ دَ عدالت مکان وليد هلته کښ
۱۷ شرارت وه او دَ رښتنئ مکان هلته کښ هم بدکارِي وه ۱۷ نو ما
په خپل زړه کښ وويل چه الله به دَ رښتينو او دَ شريرانو عدالت
وکړِي ځکه چه دَ هرِي خبرِي دَپارَ او دَ هر کار دَپارَ يو وقت دَي -
۱۸ ۱۸ ما په خپل زړه کښ دَ بنيآدم دَ حال په باب وويل چه الله
دوي وآزمايلي اوچه دوي ووينِي چه دوي په خپله لکه حيوان دِي
۱۹ ۱۹ ځکه هغه چه بنيآدم ته پيښيږِي حيوان ته پيښيږِي هم يو حال
په دواړو باندِ پيښيږِي لکه چه دغه مرِي هم هسي هغه مرِي هو
په ټولو کښ يوه سا دَه او اِنسان په حيوان زياتي توب نه لرِي ځکه
۲۰ چه واړه بطلان دِي ۲۰ ټول واړه هم يو ځاي ته درومِي ټول واړه له
۲۱ خاورو دِي او ټول واړه بيا خاورو ته گرزِي ۲۱ څوک پوهيږِي دَ
بنيآدم روح چه پاس خيژِي او دَ ځناورو روح چه زمکي ته کوزيږِي
۲۲ ۲۲ نو ما وليدل چه دَ انسان دَپارَ له دي نه چه دي په خپل کاروبار
کښ خوشحال اوسِي هيڅ ښه نشته دي دَپارَ چه دَده بخره هم هغه
دَه ځکه چه څوک به هغه بيرته راولِي چه هغه څه چه پس له
ده به وشِي و ئي گورِي ✣

## څلورم باب

۱ ۱ نو زه بيا وگرزيدم او په ټولو ظلمونو چه دَ نمر دَ لاندِ کيږِي

و مِ لیدل او کوره اوښکي دَ مظلومانو چه دَ هغوي هیڅوک تسلّي
ورکونکي نه وه او دَ دوي دَ ظالمانو په لاس کښې قوّت وه مگر دَ
هغو هیڅوک تسلّي ورکونکي نه وه ۲ نو ما دَ هغو مړیو چه وراندِ مړه ۲
شول له هغو ژوندیو نه چه اوس ژوندي دِي زیاتَ ستاینه وکړه ۳ او ۳
له دغو دواړو نه هغه بهتر دَي چه لا تر اوسَ شوي نه دَي چه
هغه بد کار چه دَ نمر دَ لاندِ کیږِي لیدلي ئي نه دَي

۴ پس له هغه ما دَ ټولو محنتونو کارونه او هر یوه دَ کار ۴
کامیابِي ولیدله چه دَ هغو په سبب سړي له خپل همسایه نه
کینه سومي دا هم بطلان او دَ باد خوراک دَي ۵ احمق خپل لاسونه ۵
مروړِي او هم په خپله خپلي غوښي خوري ۶ یو موټي چه له آرام ۶
سره وِي له دواړو موټو چه له محنتَ او دَ باد له خوراکَ ډک وِي
بهتر دَي

۷ او زه وګرزیدم او دَ نمر دَ لاندِ مِ بطلان ولید ۸ یو شته ۷
او دویم نشته دَ هغه نه زوي نه ورور شته او نه دَ هغه دَ ټول
محنت انتها او دَ هغه سترګي له دولت نه نه مړي کیږِي زه دَ چا
دَ پارَ محنت کوم او خپل ځان له ښیګړي پریکوم دا هم بطلان هو سخت
رنځ دَي ۹ له یوه نه دوه بهتر دِي ځکه چه هغو لره له خپل محنت ۹
نه ښه مزدوري دَه ۱۰ ځکه چه که دوي و پرزي نو یو به خپل ملګري ۱۰
پورته کړِي لیکن په هغه باندِ چه یواځي دَي چه وپرزِي ارمان
دَي ځکه چه دَ هغه هیڅوک نشته چه هغه پورته کړِي ۱۱ لیکن که ۱۱
بیا دوه یوځاي سره څملي نو تاؤده شِي مگر چه یواځي وِي نو څرنګ
به تود شِي ۱۲ او که یو په یواځي باندِ غالب شِي نو دواړه به دَ هغه ۱۲
سره مقابله وکړِي او دري غبرګَ رسيءِ زر نه پریکیږِي

۱۳ مسکین هلک چه دانا دَي له هغه زاړه او نادان بادشاه ۱۳
نه چه لا تر اوسه په نصیحت نه پوهیږِي بهتر دَي ۱۴ ځکه چه ۱۴

هغه له بندیخانې و بادشاهۍ کولو ته ؤځي او زیږیدلې په بادشاهت
کښ خوارشه ١٥ ما ټول ژوندي چه دَ نمر دَ لاندِ درومي ولیدل له ١٥
هغه دویم هلک نه چه دَ هغه په ځاي ودریږي ١٦ دَ هغو ټولو ١٦
خلقو انتها نشته چه دَي وړاندِ حاکم وه نو هم هغوي چه پس له
ده به راځي په ده به خوښ نه وِي په یقین سره دا هم بطلان او
دَ باد خوراک دَي ✣

# پنځم باب

١ هرکله چه ته بیت‌الله ته ورځي نو خپل قدمونه و ساته او نږدې ١
کیدل دَ اوریدلو دَپارَ دَ احمقانو له ذبحې ګذارلو بهتر دِي ځکه
چه دوي نه پوهیږي چه دَ بدئ کار کوي ٢ له خپلي خولي نه ښتابي ٢
مه کوه او ستا زړه دِ بیړه و نه کړي چه دَ الله په حضور خبري
کوي ځکه چه الله په آسمان دَي او ته په زمکه یې دي دَپارَ دِ
ستا خبري لږي وِي ٣ ځکه چه دَ کار دَ کثرت له سببَ خوب راځي ٣
او دَ خبرو له کثرت نه دَ احمق آواز ٤ هرکله چه ته دَ خداي ٤
دَپارَ نذر ومني نو دَ هغي په اداکولو کښ ډیل مه کوه ځکه چه
دَي په احمقانو نه خوښیږي هغه چه تا نذر منلي دَي ادا ئې کړه
٥ ستا نذر نه منل له هغه نه بهتر دِي چه ته ئې نذر ومني او ٥
ادا ئې نه کړي ٦ خپله خوله مه پریږده چه ستا جُسّه ګنهګاره کړي ٦
او دَ فرښتي په حضور مه وایه چه غلط شولم ولې دِ الله ستا په
آواز خپه شي او ستا دَ لاسونو کار برباد کړي ٧ ځکه چه دَ خوبونو ٧
په ډیروالي کښ او په بطلانونو کښ او دَ خبرو په کثرت کښ ګناه
راځي لیکن ته له الله نه ویریږه ٨ که ته په مُلک کښ دَ مسکینانو ٨
مظلومي او دَ عدل او دَ صداقت وکښل و وینې نو له هغې خبري نه
مه حیران کیږه ځکه چه هغه چه له هسک پاس هسک دَي نظر کوي او په
هغو پاس لوي دي ٩ دَ زمکې حاصل دَ ټولو دَپارَ دي بلکه بادشاه ٩

هم له پتهي نه خدمت مومي
١٠ ١٠ هغه چه په روپيو مينه كوي په روپيو به موړ نه شي او
نه هغه چه دَ دولت په زياتيدلو سره مينه كوي دا هم بطلان دَي
١١ ١١ هركله چه مال ډيريږي نو دَ هغه خوړونكي هم ډيريږي او دَ هغه
١٢ دَ مالك دَپارَ څه فائده دَه مگر دا چه په خپلو سترګو ئي گوري ١٢ دَ
محنتي سړي خوب خوږ دَي كه دَي لږ كه ډير وخوري ليكن دَ دولت
ډيروالي دولتمند خوب ته نه پريږدي
١٣ ١٣ يوه هولناكه بلا دَه چه هغه مې دَ نمر دَ لاندې وليده چه
١٤ دولت دَ خپل مالك دَ نقصان دَپارَ ساتلي شي ١٤ او هغه دولت
په بدكارئ سره برباد شي او ده كه څوي زيږولي وي نو په لاس كښ
١٥ ئي هيڅ نه وي ١٥ لكه چه هغه دَ خپلي مور له گيډي ووت هم هسي
لوڅ لغړ لكه چه راغلي وه بيا به لاړ شي او له خپل محنت نه به هيڅ
١٦ وا نه خلي چه هغه ئي په خپل لاس كښ يوسي ١٦ او دا هم هولناكه
بلا دَه چه بعينه لكه چه راغلي وه هم هسي به لاړ شي او هغه
١٧ چه دَ هوا دَپارَ ئي محنتونه وكړل هغه لره څه فائده دَه ١٧ هغه
په خپلو ټولو ورځوكښ په تياري كښ خوري او ډير غمزده دَي او
ناجوړتيا او خپقان مومي
١٨ ١٨ گوره هغه چه ما وليدل دا ښه دي بلكه ښائسته دي
چه سړي وخوري او وڅښي او له ټول محنت خپل نه چه دَ نمر
دَ لاندي ئي كوي ټولي ورځي دَده دَ ژوندون چه خداي ده ته وركړي
١٩ دي څكه چه دَده برخه هم دا ده ١٩ هر يو سړي هم چه الله ور ته
دولت او اسباب وركړ او ده ته ئي اختيار هم وركړ چه له هغه
نه وخوري او خپله برخه واخلي او په خپل محنت خوښي وكړي دا خو
٢٠ دَ الله بخشش دَي ٢٠ هغه به دَ خپل ژوندانه ورځي ډيري په ياد نه كړي
دي دَپارَ چه الله به دَ هغه دَ زړه په خوښئ هغه ته څواب وركړي ۞

# شپږم باب

۱ آ یوه بلا دَه چه ما دَ نمر دَ لاندِ وليدله او هغه په سړي درنه
۲ دَه ۲ يو سړي چه الله هغه ته دولت او مال او عزّت ورکړي دَي
ترديحده چه هغه لره دَ هيڅ څيز چه دَده زړه ئي غواړي هيڅ
حاجت نشته په دي هم الله هغه ته توفيق ورکړي نه دي چه
هغه ورنه وخوري بلکه بيګانه سړي ئي وخوري دا بطلان دَي او
۳ يوه هولناکه بلا دَه ۳ که سړي سل ځامن وزيږوي او ډير کاله
ژوندي وِي تر هسي حده چه دَ هغه دَ کالونو ورځي ډيري وي
اوکه دَ هغه زړه له ښيګړي موړ نه وِي او دَ هغه ښخيدل نه وِي
۴ نو زه وايم چه هغه حمل چه پريوزي له هغه نه بهتر دَي ۴ ځکه
چه دغه له بطلانَ سره راغي او په تياري کښ دروِمي او دَ دغه
۵ نوم په تياري پټ کيږي ۵ نه دغه نمر وليدلهٔ ني وپيژاند نو دغه
۶ لره په نسبت دَ هغه بل زيات آرام دَي ۶ هو اګر که هغه له
يو زر کالو دوچند و پائيږي او هيڅ ښيګړه و نه ويني ګنړه ټول واړه
۷ يو ځاي ته نه ورځي څه ؟ ۷ دَ سړي ټول محنت دَ هغه دَ خولي دَپاره
۸ دَي نو هم دَده ځان موړ نه دي ۸ ځکه چه دانا لره له احمق نه څه
فائده دَه او مسکين لره چه دَ ژونديو په مخ کښ په تللو پوهيږي
۹ څه لري ؟ ۹ دَ سترګو ليدنه دَ خواهش له ګرزيدلو بهتره دَه
دا هم بطلان او دَ باد خوراک دَي
۱۰ ۱۰ هرڅه چه شوِي وُو دَ هغه نوم خو ورانډِ ينبي شوي
دي او معلوم دَي چه هغه دَي او دغه له هغه سره چه له ده
۱۱ نه زوراور دي جګړيدلي نه شي ۱۱ ډير څيزونه دي چه بطلان ډيروي
۱۲ پس انسان لره څه فائده ده ۱۲ او څوک پوهيږي چه دَ انسان دَپاره په
ژوندانه کښ دَده دَ بطلان عمر په ګنړلي شويو ورځو کښ چه هغه

ئې دَ سورِي په دود خرڅ کړِي څه ښه دِي څوک انسان ته ښيلي
شِي چه پس له هغه به دَ نمر لاندي څه ورپسي وشِي ✣

# اوم باب

۱ آ نيکنامِي له گرانبهاؤ عطرو بهتره دَه او دَ مړ کيدلو ورځ دَ
۲ زيږيدلو له ورځي نه بهتره ده ۲ دَ وِير وکور ته ورتلل دَ ميلمستيا
دَ کور له ورتللو بهتر دِي ځکه چه دَ ټولو خلقو آخر هم دا دَي او
۳ هغه چه ژوندِي وِي په خپل زړه کښ به ئې کيږدِي ۳ غم له خندا
۴ نه بهتر دَي ځکه چه دَ څهرِي له غم نه زړه ښه کيږي ۴ دَ دانا زړه
دَ وِير په کور کښ دَي او دَ احمقانو زړه په کور کښ لگيا دَي -
۵ ۵ دَ دانا ترټنه اوريدل دَ احمقانو له سرود اوريدلو نه بهترِي دِي
۶ ۶ لکه تر کټوئِ دَ لاندِ دَ اغزيو کړچهار دَي هم هسي دَ احمق خندا
۷ دا هم بطلان دَي ۷ په يقين سره ظلم دانا سړَي ليونَي کړِي او رشوت
۸ فهم خرابوِي ۸ دَ يوي خبري آخر دَ هغي له شروع نه بهتر دَي او
هغه چه په روح کښ زغم کړِي له هغه نه بهتر دَي چه په روح
۹ کښ مغرورِي کړِي ۹ نه په خپل روح کښ بيړه مه کوه چه غُصّه شِي
۱۰ ځکه چه غُصّه دَ احمقانو په غيږ کښ ټمکيږي ۱۰ دا مه وايه چه
وړاندئِ ورځي له دي نه ولي بهترِي وي ځکه چه نه په دانايي سره
۱۱ دَ دي مقدّمي پوښتنه نه شِي کولَي ۱۱ دَ ميراث په شان دانائِي ښه
۱۲ شئِ دَي او دَ هغو دَپارَ چه نمر ته گورِي سودمند دَي ۱۲ هغه
چه دَ دانائي تر سورِي لاندِ دَي دَ روپو تر سورِي لاندِ دَي ليکن
۱۳ دانائِي يوه خوبِي دَه چه دانا لره چه لرِي ئې ژوند ورکوِي ۱۳ دَ الله
کار ووينه ځکه چه څوک هغه څيز سم کولي شِي چه ده کوږ کړِي
۱۴ دَي ۱۴ دا بختاورئِ په ورځو کښ په ښيگړي کښ شه ليکن دَ غم
په ورځ کښ فکر کوه چه الله دغه دَ هغه په مقابل جوړ کړِي دَي

دي دَپارَ چه انسان دَ خپل ځان دَ وروستو هيڅ شَي نه مومِي
۱۵ ۱۵ ما دَ خپل بطلان په ورځو کښ دا ټول وليدل يو
صادق دَيَ چه په خپل صداقت کښ مرِي او يو بدکار دَيَ چه
۱۶ په خپلي بدکارئ کښ دراز وِي ۱۶ له حد نه زيات صادق مه شه
او په زياتوالِي سره مه حکمتوال کيږه ته به ولي خپل ځان برباد کوي
۱۷ ۱۷ له حد نه زيات شرير مه شَه او احمق مه شه له خپل وقت
نه به ولي وړاندِ مړ شي

۱۸ ۱۸ ښه دَي چه ته دغه نيولي لري او چه ته له هغه نه لاس
نه سُست کوي - ځکه هغه چه له الله نه ويريږي له هغو ټولو
۱۹ به ووزِي ۱۹ حکمت دانا لره له لسو پهلوانانو چه په ښهر کښ وِي
۲۰ زيات زورآور کوِي ۲۰ دَي دَپارَ چه هيڅ اِنسان په زمکي کښ صادق
۲۱ نشه چه نيکي کوِي او گناه نه کوِي ۲۱ بيا هم دَ ټولو خبرو په اوريدلو
چه ونيلي شِي خپل زړه مه لگوه هسي نه چه ته واوري چه ستا
۲۲ نوکر په تا لعنت کوِي ۲۲ ځکه چه ته په زړه سره پوهيږي چه تا
هم په دغه شان ډيرځله په نورو لعنت کړي دَي

۲۳ ۲۳ ما په حکمت سره دا هرڅه ازمايلي دِي ما وويل چه زه به
۲۴ دانا شم ليکن هغه را نه لري وه ۲۴ هغه چه لري دِي او بيحده
۲۵ ژور دِي څوک يُ موندلي شِي ۲۵ زه وگرزيدم او خپل زړه چه پوه شم
او تلاش وکړم او حکمت او دانايي ومومم او چه احمقي بدي او
۲۶ کم عقلي او ليونتوب وپيژنم ۲۶ نو ما له مرگ نه زياته ترخه هغه ښځه
بياموندَه چه زړه يُ دَ دامونو او دَ جالونو او چه لاس يُ دَ زنځيرونو
په دود دِي هغه چه دَخداي په حضور کښ قبول دِي نو له هغي
نه به خلاص شِي مگر هغه چه گنهگار دِي په هغي به ونيولي شي
۲۷ ۲۷ گوره واعظ وايي دا مِ بياموندلي دَي چه ما يو په يوه وکانړه چه
۲۸ نتيجه ورنه وکاږم چه تر اوسَ پوري ځما زړه يُ لټوِي ۲۸ ليکن

ما و نه موند ما له زړو نه يو سړئ بيامونډ ليکن يوه ښځه مې له
۲۹ هغو وارو نه بيا نه موندله ۲۹ گوره ما صرف دومره بيامونده چه
الله انسان لره سم جوړ کړ ليکن دوي ډېر فکرونه و لټول *

# اتم باب

۱ ۱ څوک لکه دانا او څوک دئ چه دَ يوي يوي خبري دَ بيان کولو
پوهه لري دَ اِنسان دانائي دَ هغه مخ روښن کوي او دَ هغه دَ څېري
۲ سختي بدله شي ۲ زه درته وايم دَ بادشاه خبره و ساته او دغه
۳ په سبب دَ قسم دَ الله ۳ ته دَده له مخ تللو ته بيړه مه کوه او
په بدکار باندې مه ودرېږه ځکه هغه چه دي غواړي هغه کوي -
۴ ۴ دي دَپارَ چه دَ بادشاه کلام سلطان دَئ او څوک به هغه ته
۵ وواېي چه ته دا څه کوي؟ ۵ هغه چه حکم ساتي نو په بدي خبري
۶ به و نه پوهيږي او دَ دانا زړه وقت او حق پېژني ۶ دي دَپارَ چه دَ
هر يوه کار لره يو وقت او يو عدالت دَئ چه دَ اِنسان غم په هغه
۷ باندي زياتي کيږي ۷ ځکه هر څه چه به وشي ده ته معلوم نه دي
۸ او څوک ئي هغه ته ورښيلي شي چه به وشي ۸ هيڅ سړي لره په
روح باندې قدرت نشته چه روح تم کړي او دَ مرکيدلو په ورځ ئي
هيڅ وس نشته او په جنگ کښي آزادول نشته او نه به شرارت
۹ هغوي لره چه کوي ئي آزاد کاندې ۹ ما دا ټول وليدل او خپل زړه مې
په ټول کار باندې چه تر نمر دَ لاندې کيږي ولگاوه داسي وقت دَئ چه
په دغه کښي يو سړي دَ بل سړي دَده دَ نقصان دَپارَ وس لري
۱۰ ۱۰ هم هسي ما وليدل چه شريران ښخ شول او هغوي چه
راست کار کاوه له پاک مکان نه لاړل او په هغه ښهر کښي هېر
۱۱ شول دا هم بطلان دَئ ۱۱ اگر که په بدکار باندې دَ سزا حکم فوراً
نه ورکيږي دي دَپارَ دَ بني آدم زړه په بدکاري کولو باندې په دوي

۱۲ کښې ډک دي ۱۲ اګر که ګنهګار سل واره بدي وکړي او عمر ئې دراز
شي نو هم زه په يقين سره پوهيږم چه دَ هغو به ښيګړه وي چه
۱۳ له خداي نه ويريږي او دَده په حضور ريږي ۱۳ ليکن دَ ګنهګار
ښيګړه به هيچري نه وي او نه به دَي خپلي ورځي چه دَ سورې
په دود دي اوږدي کړي دي دَپارَ چه هغه دَ الله په حضور
۱۴ نه ويريږي ۱۴ يو بطلان دَي چه په زمکه باندِ کيږيُ چه صادقان
دي چه هغوي ته دَ بد کار دَ عملونو په شان رسيږي او شريران
دي چه هغوي ته دَ صادقانو دَ عملونو په شان رسيږي ما وويل
۱۵ چه دا هم بطلان دَي ۱۵ پس ما دَ خوښئِ تعريف وکړ ځکه چه تر
نمر دَ لاندِ دَ اِنسان دَپارَ له دي نه هيڅ بهتر نشته مګرچه وخوري
او وڅښي او خوشحال اوسي ځکه چه دغه دَ هغه په محنت کښې
دَ هغه دَ ژوند تر ټولو ورځو پوري چه الله تر نمر دَ لاندِ هغه
ته ورکړي ورسره شيه تيروي
۱۶ ۱۶ هرکله چه ما خپل زړه ولګاوه چه حکمت زده کړم او
هغه کار چه په زمکه باندِ کيږي ووينم {ځکه چه داسي هم شته
۱۷ چه سترګي ئې نه دَ ورځي نه دَ شپي خوب ويني} ۱۷ پس ما ټول
کار دَ الله وليد چه انسان هغه کار چه تر نمر دَ لاندِ کيږي
نه شي معلوم کولي اګرکه اِنسان دَ هغه په طلب کښې محنت وکړي
ليکن نه به ئې مومي او که دانا هم وائي چه په هغه به پوه شم
ليکن نه به توانيږي چه هغه ومومي ❊

# نهم باب

۱ آ ځکه چه دا ټول مِ خپل زړه ته ورکړه او دا ټول مِ وآزمايل
چه صادقان او دانايان او دَدوي کارونه دَ الله په لاس کښې
دي هم محبّت هم کينه انسان ئې نه پيژني ټول دَدوي دَ وړاندي

دِي ۲ ټول په هغه ټولو يوه حادثه دَه په صادق او په شرير په نيک ۲
او په پاک او په ناپاک په ذبح کونکي او په هغه چه ذبح نه کوي
لکه نيک هم هسي خطاکار لکه قسم خورونکي هسي هغه چه له قسم نه داريږي
۳ دَ ټولو څيزونو په منځ کښې چه تر نمر دَ لاندِ کيږي يوه خرابي ۳
دا دَه چه يوه واقعه په ټولو باندِ تيريږي هو دَ بني‌آدم زړه هم
له شرارت نه ډک دَي او تر هغه پوري چه دوي ژوندي دِي
ليونتوب دَ هغو په زړونو کښې دَي او پس له هغه به مړيو ته
ورشي ۴ ليکن هغه لره چه له ټولو ژونديو سره لګيا شوي دَي ۴
اميد دَي چه ژوندي سپي له مړه زمري نه بهتر دَي ۵ دي دَپارَ ۵
چه ژوندي پوهيږي چه مونږ به مړه شو ليکن مړي هيڅ هم نه
پوهيږي او دَ دوي دَپارَ نور هيڅ اجر نشته ځکه چه دَ دوي يادګاري
هيره کيږي ۶ هم دَدوي محبّت هم دَدوي دُښمني هم دَدوي کينه تر ۶
اوسَ ورک شول او تر ابدَ پوري په هغو ټولو کارونو کښې چه تر
نمر دَ لاندِ کيږي دوي لره برخه نشته

۷ لاړ شه په خوښئ سره خپله ډوډئ خوره او دَ زړه په ۷
خوشحالئ سره خپل شراب څښه ځکه چه الله تر اوسه هم ستا کارونه
قبول کوي ۸ ستا جامي دِ مدام سپيني وِي او ستا سر دِ دَ غوړو ۸
محتاج نه وِي ۹ دَ خپل بطلان دَ ژوند ټولي ورځي له هغي ارتيني سره ۹
چه په تا باندِ ګرانه دَه په خوښئ سره ګزران کوه چه تا ته ئي تر نمر
دَ لاندِ درکړي دَه ستا دَ ټول بطلان په ورځو کښې ځکه چه په دي
ژوند کښې او ستا دَ هغه محنت په منځ کښې چه ته تر نمر دَ لاندِ
کوي ستا هم دا برخه دَه ۱۰ هغه ټول چه ستا لاس ئي کول مومي هغه ۱۰
په خپل قوّت سره کوه ځکه چه هلته په دوزخ کښې چه ته ورځي
نه کار نه هنر نه فهم نه حکمت شته

۱۱ وګرزيدم او تر نمر دَ لاندِ مِ وکتل چه ګړندي لره دوړ ۱۱

نشته او نه زوراور لره جنګ او نه دانا لره ډوډۍ او نه دولت
فهمدارو لره نه نعمت پوهيدونکو لره بلکه هغوي ټولو ته وقت او
۱۲ بخت پيښيږي ۱۲ ځکه چه انسان هم خپل وقت نه پيژني لکه کبان
چه په جال اخستل کيږي او لکه چڼچڼي چه په لومو کښ نيولي
کيږي هم هسي بني‌آدم ښخيږي په بدوقتۍ کښ چه ناڅاپه ورباندې
پريوزي
۱۳ ۱۳ دا دانائي مې هم وليده تر نمر د لاندې او دا ما ته لوي
۱۴ ښکاريده ۱۴ يو وړوکي ښهر وه او په هغه کښ لږ خلق وه
په هغه باندې يو لوي بادشاه ورغي او قلعه‌بند ئې کړ او د هغه
۱۵ په برابر ئې لوي لوي باري جوړي کړي ۱۵ مګر د هغه ښهر په منځ
کښ يو مسکين دانا سړی وموندلي شه چه هغه په خپل حکمت
سره هغه ښهر خلاص کړ سره له دي چه هيڅا هغه مسکين سړي
۱٦ ياد نه کړ ۱٦ نو ما وويل چه حکمت له زور نه غوره دی په دي هم
د هغه مسکين د حکمت سپکه کيږي او د هغه خبري نه اوريدلي
کيږي
۱۷ ۱۷ د دانايانو خبري چه په ملائمۍ سره وکړي شي د هغه سړي
د چغي په نسبت چه په بيوقوفو باندې حاکم دی زياتي آوريدلي شي حکمت
د جنګ له وسلو نه بهتر دی ليکن يو ګنهګار ډيره نيکي خرابه کوي *

# لسم باب

۱ آ مړه مچان د عطار عطر بدبوی کوي هم هسي لږ څه بي وقوفي
۲ له دانائي او له عزت نه درنه ده ۲ د دانا زړه د ده ښي لاس
۳ دي ليکن د احمق زړه د ده کينړ لاس دی ۳ هو احمق چه دی
هر کله چه دي په لاري ځي فهم ئي کميږي او هغه ټولو ته وائي
۴ چه زه احمق يم ۴ که د حاکم روح په تا باندې وخيژي خپل

ځاي مه پرېږده ځکه چه حليمي لوي ګناهونه تم کوي ۵ شرارت شته ۵
چه ما تر نمر دَ لاندِ وليد دَ يوي خطا په شان دَي چه له حاکمَ
کيږِي ۶ احمقي په ډېر عزّت کښ کښېنولي شوي دَه ليکن دولتمند په ۶
لاندِ ځاي کښېني ۷ ما نوکران په آسونو وليدل او سردار دَ نوکرانو په ۷
دود په زمکي باندِ تلونکي ۸ هغه چه ډوغل کني په هغه کښ به پرېوزِي ۸
او چه وياړه ماتوِي مار به يُ وچيچي ۹ چه کاڼي وکاږِي پرِ درديږي ۹
او چه لرګي ځيري کوِي نو ورنه په خطر کښ وِي ۱۰ که اوسپنه پڅه ۱۰
ده او که هغه يُ مخ تيره نه کړِي نو ډېر زور کول په کار دِي ليکن
حکمت دَ ښکارولو دَپارَ فائده مند دَي ۱۱ که چري مار وراندِ له منتر ۱۱
نه وچيچي نو په منتر کونکي فائده نشته ۱۲ دَ دانا دَ خولي خبري نعمت ۱۲
دِي ليکن دَ احمق شونډي به دي ونغرِي ۱۳ دَ ده دَ خولي دَ خبري ۱۳
ابتدا احمقي دَه او دَ ده دَ خبرو انتها بده منافقي دَه ۱۴ احمق ډېري ۱۴
خبري جوړوِي ليکن سړِيَ نه پوهيږي چه څه به وِي او چه له ده نه
ورستو به څه وشي څوک يُ ور ښکاره کولي شِي ۱۵ دَ احمقانو محنت ۱۵
هغوي ستړِي کوِي ځکه چه دوي و ښهر ته په تلو نه پوهيږِي ۱۶ اي ۱۶
زمکي په تا افسوس دَيَ ستا بادشاه هلک دَيَ او ستا سرداران
صبا خوراک کوِي ۱۷ مبارکه ته يُ اي زمکي چه شاه زاده ستا بادشاه ۱۷
شه او ستا سرداران په مناسب وقت خوري دَ قوّت دَپارَ او نه
دَ نشي دَپارَ ۱۸ په ډېره سستيُ بام نړيږي او له سُستو لاسونو ۱۸
کور څڅيږي ۱۹ دَ خندا دَپارَ خوړنه کوِي او شراب ژوند خوشحالوِي او په ۱۹
روپيو ټولو ته ځواب ورکوِي ۲۰ ته په خپل فکر کښ هم په بادشاه لعنت مه کوه ۲۰
او نه په خپل خوابګاه کښ په دولتمند لعنت کوه ځکه چه دَ هوا مرغيُ
به آواز يوسِي او پرونو وال به هغه خبره ښکاره کړِي +

# يولسم باب

آ څپله ډوډيُ دَ اوبو په مخ وغورزوه ځکه چه ته به پس له ډېرو ۱

۲ ورځو هغه بیاموي ۲ اوۀ لره بلکه آتو لره حِصّه ورکړه ځکه چه ته
۳ نه پوهيږي چه په زمکه به څه بلا وشي ۳ هرکله چه اوريځي له بارانَ
ډکي وِي نو په زمکه خپل ځان خالِي کړِي او که وُنه دَ سُهيل په
لورِي يا دَ قطب په لورِي پرِيوزِي نو چرته چه وُنه پرِيوزِي هلته
۴ کښ پرته اوسِي ۴ هغه چه باد ته نظر کوِي نو نه به يُ کرِي او هغه
۵ چه اوريځو ته گورِي نو لوَ به نه کړِي ۵ لکه چه ته نه پوهيږي چه
دَ باد لار څه دَه او دَ حاملي په رحم کښ هډُونه څنګه{لوي کيږي}
۶ هم هسي به ته دَ خداي کارونه چه هرڅه کوِي ونه پيژني ۶ صبا
خپل تخم وکره او نماښام ته هم خپل لاس مه سُست کوه ځکه
چه ته نه پوهيږي چه له هغو به کوم بو لوي شِي دغه يا هغه
۷ يا که دواړه به سره ښه وِي ۷ نُور خوخوږ دَيِ او دَ نمر کتل په
۸ سترګو ښه لګيږي ۸ هو که سړَي تر ډيرو کالونو پوري و پايِي او په
هغو ټولو کښ خوښِي وکړِي ليکن دي دِ دَ تاريکئ ورځي په ياد لرِي
۹ ځکه چه هغه به ډيري وِي هرڅه چه راځِي بطلان دَيِ ۹ اي ځوانه
نه په خپلي ځوانئِ کښ خوښ اوسه او دَ خپلي ځوانئ په ورځو کښ
به دِ خپل زړه خوشحال کړِي او دَ خپل زړه په لارو کښ او دَ
خپلو سترګو په منظور کښ درومه ليکن پوه شه چه دَدي ټولو
۱۰ خبرو دَپارَ به دِ الله په عدالت کښ راولِي ۱۰ او خپګان له خپل
زړه نه لرِي کړه او بدِيَ له خپلي غوښي لرِي کړه ځکه چه هلکتوب
او ځوانِي دواړه بطلان دِي *

# دولسم باب

۱ ۱ دَ خپلي ځوانئِ په ورځو کښ خپل خالق په ياد کړه وړاندِ له راتلو دَ
بدي ورځي او هغه کالونه نژدي راځِي چه په هغو کښ به ته ووايي چه
۲ له دغو نه ځما هيڅ خوښي نشته ۲ وړاندِ له هغه چه نمر او روښنائِي او
۳ سپوږمئِ او ستورِي تاريک شِي او اوريځي پس له وريدلو نه وچاروزِي ۳ په

هغې ورځې چه دَ کور ساتونکي ولړزېږي او زورور خلق ضعيف کېږي او
ميچني کونکي بندوي ځکه چه هغوي لږ دي او هغوي چه له کړکيو نه کتل
کوي تاريک شي ۳ او په کوڅې دروازې بندې شي هرکاه چه دَ ميچني ۴
آواز ښکته شي او هغه دَ چڼچڼو په آواز پورته کېږي او دَ نغمې
ټولې لوڼړه ضعيفې شي ۵ اوچه هغوي له لوړو هم ووېرېږي او په لارې ۵
کښې دهشتونه وي او دَ بادام وُنې ګلونه کوي او ملخ درند شي او شهوت
سُست شي ځکه چه اِنسان په خپل ابدي مکان ته ورځي او وير کونکي
په کوڅه په کوڅه ګرزي ۶ له هغه په خواچه دَ سپينو زرو رسئ پرانتلې ۶
شي او دَ سرو زرو کوزه ماته کړې شي او کړې په چينې باندې مات کړې
شي او په کوهي باندې څرخ مات کړې شي ۷ هغه وقت به دُوړې زمکې ۷
ته وګرزي لکه چه وي او روح به هغه الله ته وګرزي چه ئې بخښلې
دې ۸ دَ بُطلانونو بُطلان واعظ وايي ټول بُطلان دي ۸
۹ او له دې نه زيات واعظ چه دانا وه تر اوسه ئې خلقو ته پوهه ۹
زده کوله هو ده وزن کوله او ډېر مثالونه ئې په ترتيب سره بيان
کړل ۱۰ واعظ دَ خوښئ دَ خبرو دَ مُندلو لټوونکي وه او دَ رښتينې ۱۰
خبرې چه په راستئ سره ليکلې شوې وې
۱۱ دَ دانا خبرې دَ چوکې په شان دي او دَ هغو ميخونو په دود چه ۱۱
دَ مجلس له راټولونکي سره ټک وهلي شي او هغوي له يوه شپانه
بخښش کړې شوي دي ۱۲ نو اوس اي ځما ځويه له دغو نه خبردار ۱۲
اوسه دَ ډېرو کتابونو جوړولو انتها نشته او ډېر لوستل صورت
ستومانه کوي
۱۳ دا دَ دې حال انتها ده ټول آوريدلې شوي دي له الله نه ۱۳
ووېرېږه او دَ ده حکمونه وساته چه ټول فرض دَ انسان هم دا دي
۱۴ ځکه چه الله به هر يو کار عدالت ته راوړي له هر يوه پټ ۱۴
څيز سره که ښه وي که بد ❋

# غزل الغزلات

## اول باب

۱ غزل الغزلات دَ سليمان ۱

۲ هغه مِ دِ دَ خپلي خولي په ښکلولو سره ښکل کړي ۲
ځکه چه ستا مينه له شرابو بهتره دَه

۳ دَ خوشبوئي دَپارَ ستا عطر ښه دِي ۳
ستا نوم بهَوَلي شوي عطر دِي
ځکه چه پيغلي په تا مينه کوِي

۴ ما راکاږه ۴
نو مونږ به په تا پسي وزغلو
بادشاه زه په خپلي خوني کښ دننه راوستلم
مونږ به په تا کښ خوشحال اوخورم شُو
مونږ به ستا دَ ميني ذکر له شرابو زيات وکړو
هغوي په رښتنيءِ سره په تا مينه کوِي

۵ زه تور يم ليکن ښائسته يم ۵
اي دَ اورشليم لونړو
لکه دَ قيدار خيمي
لکه دَ سليمان پردي

۶ ماته مه گوره چه زه سکانړ يم ولې چه زه نمر لوغړن کړي يم
ځما دَ مور ځامن په ما خپه شول
هغوي زه دَ تاکستانونو نگهبانه کړم
ليکن ماخپل تاکستان ژغورلي نه دي

۷ ۷ ما ته راوښيه اي ته چه ځما ځان دربانډِ مينه کوِي
چه چرته څروي
دَ غرمي په وقت چرته پنډه کوي
ځله به زه دَ يوي پرده داري په شان شم
ستا دَ ملګرو کنډوکونو څنګه

۸ ۸ اي ته چه په ښځو کښ بي‌حده ښائسته يي
که ته نه پيژني
نو دَ رمي په سنډ ووزه
اوخپل سيرلِي دَ شپنو خيمو څنګه وڅرَوَه

۹ ۹ اي ځما جانانه ما ته مشابه کړي يي
يوي اسپي سره چه دَ فرعون په ګاډيو کښ ده
۱۰ ۱۰ ستا بارخوګاني په کوځيو خوشنما دِي
او ستا غاړه په حميلونو
۱۱ ۱۱ مونږ به ستا دَپارَ دَ سرو زرو حميلونه جوړ کړو
سره دَ سپينو زرو دَ ګُل ميخونو

۱۲ ۱۲ تر هغه پوري چه بادشاه په خپل مجلس وه
ځما سُنبلو خپله خوشبوئِي خوره کړه
۱۳ ۱۳ ځما محبوب دَ مرو يوه ګځوړيِ ده
چه ځما دَ تيو په مينځ کښ شپه تيروِي
۱۴ ۱۴ ځما محبوب دَ نکريځو دَ ګلونو دسته دَه
چه عين ګډيِ په تاکستانو کښ دَه

۱۵ ګوره ته ښائسته يې اې ښما جانانه ګوره ته ښائسته يې ۱۵
ستا سترګې کوترې دي

۱۶ ګوره ته ښائسته يې اې محبوبا هو خوشنما يې ۱۶
ښمونږ پلنګ هم زرغون دی
۱۷ ښمونږ د کور شهتير د نښتر دي ۱۷
او ښمونږ لَښتې د سروي

## دويم باب

۱ زه د سرون نرګس يم ۱
او د خوړو سوسن يم

۲ لکه چه سوسن د اغزيو په مينځ کښ ۲
هم هسې ښما جانان د لونړو په مينځ کښ

۳ لکه چه د منړې ونه د بنړ د ونو په مينځ کښ ۳
هم هسې ښما محبوب د زلمو په مينځ کښ
زه د هغې تر سورې لاندې په ډيرې خوښۍ سره ناسته وم
او د هغې ميوه ښما د تالو خوږه وه
۴ هغې زه و ميخانې ته دننه راوستلم ۴
او د هغې د بيرغ په ما باندې مينه وه
۵ د مويزو له ګکورو ما ته راکړه په منړو سره م تسلّي وکړه ۵
ځکه چه زه د مينې رنځور يم
۶ د هغې کينړ لاس ښما تر سر د لاندې دی ۶
او د هغې ښې لاس را تر غاړه وزې

۷ ۷ اي دَ اورشليم لونړو زه تاسي ته په هوسيو
او دَ صحرا په غرڅنيو قسم درکوم
چه تاسي محبوب مه خوځوئِ
او مه ئِي ويښ کوئِ
تر هغه پوري چه ئِي رضا وِي

۸ ۸ څما دَ محبوب آواز گوره راځِي
په غرونو ټوپ وهونکَي او په غونډيو کډيدونکَي
۹ ۹ څما محبوب دَ هوسئِ يا دَ غرڅنئِ دَ کَبلو په شان دَي
گوره هغه څمونږ دَ ديوال دَ وروستو ولاړ دَي
هغه په کړکيو کښ کتل کوِي
او له دريڅو خپل ځان ښکاره کوِي
۱۰ ۱۰ څما محبوب ځواب راکړ راته ئِي وويل
چه پورته شه اي څما ياري اي څما نازنيني او راځه
۱۱ ۱۱ ځکه گوره چه ژمي تير شه
باران تير شه لري شه
۱۲ ۱۲ گلونه په زمکي باندِ ظاهريږي
دَ زمزمه وقت را رسيدلي دي
څمونږ په زمکي کښ دَ قمريو آوازونه په آوريدلو کښ راځِي
۱۳ ۱۳ اِنځر خپل غوره پخوي
او تاکونه گلونه کوِي
خوشبوئِي تر وزي
نو پورته شه اي څما محبوبي اي څما نازنيني او راځه
۱۴ ۱۴ اي څما کوتري چه دَ پربنو په چاودونو کښ يي او چه دَ
کمرونو په آړ کښ يي

خپله څهره را ښکاره کړه خپل آواز ما ته واوروه
ځکه چه ستا آواز خوږ دَي او ستا څهره نازنينه دَه
۱۵ څمونږ دَپارَ لومبړي ونيسه هغه دَ لومبړيو بچي چه تاکستان خرابوي 15
ځکه چه څمونږ په تاکونو کښ ګلونه لګيدلي دِي
۱۶ څما محبوب څما دَي او زه دَ هغه يم 16
هغه دَ سوسنو په مينځ کښ څرڅونکي دَي
۱۷ تر دي چه ورځ سړه شي او سوري ونښتي 17
نو ته بيرته راشه اي څما محبوبه او ته دَ هوسيِ يا دَ غرڅنيِ دَ کبلي په شان شه
په غرونو دَ باتر *

# دريم باب

۱ ما په شپي کښ هغه په خپل پلنګ ولټاوه چه څما ځان پرِ مينه کوله 1
ما هغه ولټاوه ليکن بيا مِ نه موند
۲ اوس به زه پورته شم او په ښهر کښ به وګرزم 2
زه به هغه ولټوم چه څما ځان پرِ مينه کوي
ما هغه ولټاوه ليکن ومِ نه موند
۳ هغي نګهبانو چه په ښهر کښ ګرزي ويُ موندلم 3
او ما وويل تا هغه وليد څه؟ چه څما ځان پرِ مينه کوي
۴ هرګاه چه زه له هغوي نه په وړاندِ تيره شوم 4
نو هغه چه څما ځان پرِ مينه کوله بيا مِ موند
ما هغه ونيوه او پرِ به يُ نږدم
تر هغه پوري چه زه يُ دَ خپلي مور په کور کښ
او دَ خپلي والدي په خوني کښ راولم
۵ اي دَ اورشليم لونړو 5
زه وتاسي ته په هوسيو او دَ صحرا دَ غرڅنو قسم درکوم

چه تاسي محبّت مه خوځوي او مه ئي ويښ کوئ
ترهغه پورې چه ئي رضا وي

٦ ٦ داڅوک دي چه دَ لوګي دَ ستني په شان له بيابان راځي
په مرو او په لوبانو خوشبويَ شوي په ټولو اوړو دَ سوداګر
٧ ٧ ګوره پالکيِ دَ سليمان
چه دَ هغي په چاپيره شپيته جبّاران دي
دَ اسرائيل له جبّارانو نه
٨ ٨ همه واړه توري نيسي او دَ جنګ آموخته دي
دَ هر يوه توره دَ هغه په ورانه ده
په سبب دَ هيبت دَ شپي
٩ ٩ سليمان بادشاه دَ خان دَپارَ پالکيِ جوړه کړه
دَ لُبنان له لرګو نه
١٠ ١٠ دَ هغي بازوګان دَ سپينو زرو
او دَ هغي تلي دَ سرو زرو او ګدي ئي ارغواني جوړه کړه
او دَ هغي دننه په مينې سره فرش شوي وه
دَ اورشليم دَ لوڼو دَپارَ
١١ ١١ اي دَ صيحون لوڼو باهر ووزئِ او سليمان بادشاه وګورئِ
چه دَده هغه تاج دي چه دَده مور دَده دَ واده په ورځ
پرِ تاجوال کړ
او دَده دَ زړه دَ ښاديِ په ورځ کښ *

# څلورم باب

١ ١ ګوره ته نازنينه يي اي څما ياري
ته نازنينه يي

ستا سترګي ستا دَ نقاب دَ ورستو ګوترې دِي
ستا ويښته دَ وزو دَ کنډک په شان
چه دَ جلعاد په غره باندِ پنډيږي
۲ ستا غاښونه دَ ميږو دَ رمي په دود دِي چه سکښتلي وِي ۲
چه له وينځلو راځي
له هغوي نه دَ هرې يوې دوه بړغي وِي
او په هغوي کښ شنډې نه وِي
۳ ستا شونډي لکه تار دَ قرمزي دِي ۳
ستا خوله ښايسته دَه
ستا رُخساري لکه ټوټي دَ انار
ستا دَ نقاب دَ لاندِ
۴ ستا غاړه لکه دَ داؤد برج چه دَ وسلې خاني دَپاره جوړ ۴
شوي دي
په هغه باندِ په زرګونو ډالونه ځوړند شوِي دِي
هغه ټول واړه دَ پهلوانانو کنډل دي
۵ ستا دوه تِي دَ هوسئِ دَ بچو په دود دِي چه بړغوني وِي ۵
چه دَ سوسنو په مينځ کښ څرِي
۶ تر هغه چه ورځ سره شِي ۶
او سوري وتښتي نو زه به دَ مرو وغرِه ته لاړ شم
او دَ لُبانو وغونډئِ ته
۷ اي څما جانانه ته ټوله نازنينه يې ۷
په تا کښ هيڅ عيب نشته

۸ له ما سره له لُبنانَ اي څما چنغلي ۸
له ما سره له لُبنانه راځه

کوره دَ اَمنًا له سر نه
دَ سنیر او دَ حرمون له څوکو نه
دَ زمریو له غارونو نه
او دَ پړانګانو له غرونو نه
٩ ٩ اي څما خوري څما چنغلي تا څما زړه لوټ کړ تا دَ خپلو سترګو په یوې سره
دَ خپلي غاړي په یوه حمیل سره
څما زړه دِ لوټ کړي دَي
١٠ ١٠ اي څما خوري څما چنغلي ستا مینه څومره ښه دَه
ستا محبت له شرابو نه څومره زیات بهتر دَي
او ستا دَ عطرو بوي له ټولو خوشبویو نه
١١ ١١ ستا شونډي اي چنغلي شهد څڅوي
ګبینه او پئ ستا تر ژبي لاندِ دِي او ستا دَ جامو خوشبوي لکه دَ لُبنان خوشبویي دَه
١٢ ١٢ څما خور څما چنغله یوه قُلف شوي باغچه دَه
یوه بنده کړي چینه دَه او سر مُهر کړي شوي چشمه دَه
١٣ ١٣ ستا دَ باغ بوټي دَ انارو وني دِي له لذتناکو میوو سره
نکَریزي دَ سنبل دَ ونئ سره
١٤ ١٤ سنبل او زعفران
کانه او دَ دارچیني او دَ لُبانو دَ ټولو ونو سره
مُر او عود او هر قسم خوشبویه مصالح
١٥ ١٥ دَ باغیچو یوه چشمه
او دَ اوبو دَ حیات یو کوهَي او له لُبنانه بهیدونکي دریابونه

١٦ ١٦ اي دَ شمال باده ویښ شه او دَ سُهیل باده راشه

ځما په باغ والوزه تاچه خوشبوي دَ هغه خوره شي
ځما محبوب دِ په باغ کښ راشي او دَ هغه ښي ميوي دِ وخوري

## پنځم باب

۱ زه په خپل باغ کښ راغلم اي ځما خوري چنغلي ۱
ما خپل مُر له خپل بلسان سره ټول کړي دي
ما خپل ځپياکه دَ هغي له ګبينه سره خوړلي دي
ما خپل شراب له خپلو پيو سره څښلي دي
اي دوستانو خوريِ
څښئ اي عزيزانو ډير وڅښئِ

۲ زه خوبيدلي وم مګر زړه ځما ويښ وه ۲
ځما دَ محبوب آواز دَي چه دروازه ټکوي
ځما دِ پارَ ئي پرانزه ځما خوري ځما جاناني ځما کوتري ځما
پاکي ځما کاملي
چه ځما سر له شبنم نه ډک دَي
او ځما څڼري دَ شپي له څاڅکو نه
۳ ما خپله قباړئ لري کړي دَه زه هغه واغوندم ۳
ما خپلي ښپي وينځلي دِي
زه هغه څرنګ خيرني کړم
۴ ځما محبوبي خپل لاس له سُوري نه اوږد کړه ۴
او ځما لرمون پر وسيزه
۵ زه پورته شوم چه دَ خپل محبوب دَپارَ پرانزم ۵
او ځما لاسونو مُر وڅڅول
او ځما ګوتو بهيدونکي مُر وڅڅول

دَ جندري په قبضي باندِ

۶ ۶ ما دَ خپل محبوب دَپارَ پرانت

لیکن ځما محبوب وگرزید او پوري شه

ځما ځان ورته په ویلو سره ووت

ما هغه ولټاوه لیکن ومِ نه موند

ما را و باله لیکن ده ځواب را نه کړ

۷ ۷ ځوکیدارانو چه په ښهر کښ گرزیدل و موندلم

هغوي زه و وهلم او ژوبل ئي کړم

دیوالونو ساتونکو ځما ځادر رانه یوور

۸ ۸ اي دَ اورشلیم لوڼو زه تاسي ته قسم درکوم چه که تاسي
ځما محبوب و مومئِ

نو هغه ته ښکاره کړئِ چه زه دَ مینې بیمار یم

۹ ۹ ستا دَ محبوب په نسبت دَ بل محبوب څه دِي

اي ته چه په ښځو کښ نازنینه یي

ستا محبوب لره په نسبت دَ بل محبوب څه دِي

چه ته مونږ ته داسي قسم راکوي

۱۰ ۱۰ ځما محبوب سپین او سُور دَي

دَ لسو زرو په مینځ کښ بیرغ شوي دَي

۱۱ ۱۱ دَ هغه سر سوچه سره زر دَي

دَ هغه زلفي پیچ په پیچ دِي او دَ کاغی په شان توري دِي

۱۲ ۱۲ دَده سترگي لکه کوترِي دَ اوبو په کاریز

وینځلي په شودو ناستي په ډکو ولو

۱۳ ۱۳ رخسارونه ئي دَ بلسانو چمن او دَ خوشبوئ غونډئ دِي

شونډې ئې سوسن دِي چه له هغو نه بهيدونکي مُرخاڅي
۱۴ لاسونه ئې لکه دَ سرو زرو کړۍ چه په زبرجدو جړاؤ شوي دِي 14
ګېډه ئې دَ هاتِي دَ غاښ کار دَي چه په نيلمو پټه شوي دَه
۱۵ دَده لېنګي دَ سنګِ مرمر ستني دِي چه دَ سرو زرو په کرسيو دِي 15
دَده ليدنه دَ لُبنان غوندِ خوشنما لکه دَ لمنځو
۱۶ دَده خوله ډيره خوږه دَه هو ټوله سره خواهش دَه 16
اي دَ اورشليم لوڼو
دغه ځما محبوب او ځما دوست دي

# شپږم باب

۱ ستا محبوب چرته لاړ شه 1
اي چه ته له ښځونه نازنينه يي ستا محبوب چرته وګرزيدهٔ
چه موږ ئې له تا سره ولټوو

۲ ځما محبوب په خپل بوستان کښې دَ بلسان وپټيو ته کوز شه 2
چه په باغونو کښې وڅرِي او دَ سوسنو ګلونه وانږِي
۳ زه دَ خپل محبوب يم او ځما محبوب ځما دَي 3
هغه دَ سوسنو په مينځ کښې څرِي

۴ اي ځما جانانه ته دَ ترضه په طور ښايسته يي 4
دَ اورشليم په دود خوښه
هيبتناک لکه لښکر له بيرغونو سره
۵ خپلي سترګي رانه وګرزوه 5
ځکه چه ما ويره وِي
ستا ويښته دَ بزو دَ کنډکو په دود دِي

چه دَ جلعاد په لمن کښ پنډيږي
٦ و سټا غابښونه دَ ګډو دَ رمي په دود دِي
چه له وينځلو نه ووزي چه هره يوه دوه برغه لرِي
او په هغوي کښ بوره نه وِي
٧ ز ټوټي دَ انار سټا رخساري دِي
سټا دَ نقاب دَ ورستو
٨ ح شپيته بيګمي او اتيا صوريتي او بي شماره پيغلي خو شته
٩ ط ليکن خما کوتره خما کامله تشه يوه ده
او دَ خپلي مور يو خري
او دَ خپلي والدي غوره ده
لونړو هغه وليدله او مبارک ئي ورته وويل
هو بيګمو او صوريتو وليده دَ دي مدحه ئي وکړه

١٠ ی داخوک دې چه دَ صبا په خير ښکاره کيږي
لکه دَ سپوږمۍ نازنينه
لکه نمر صافه
لکه لښکر له بيرغونو سره هيبتناکه

١١ یا زه دَ چارمغزو و باغ ته کوز شوم
چه دَ خوړ زرغونه ووينم
چه په تاکونو کښ غوټي ووينم
او په انارو کښ غوټۍ
١٢ یب زه نه پوهيدلم خما ځان کيښودلم دَ اشراف قوم دَ کاديو
په مينځ کښ

١٣ بېرته راشه بېرته راشه اي شلوميت ١٣
بېرته راشه بېرته راشه
چه سونږ په تا نظر وکړو

تاسي به په شلوميت کښې ولي وکورِئ
لکه چه دَ محنايم ګډېدل

# اوم باب

١ ستا په پښو پڼي څرنګ ښايسته دِي اي دَ امير لُوري ١
ستا دَ ورنونو ګردوالي دَ جواهرو په دود دي
چه دَ کاريګر دَ لاسونو کاريګرِي دَه
٢ ستا ناف لکه کاسه دي ٢
چه په هغي کښې
دَ ګډو کړيو شرابو کموالي نشته
ستا ګېډه دَ غنمو نوده دَه
په سوسنو وباړه داره
٣ ستا دوه نِي لکه دوه کبلي دِي ٣
چه غبرګ دَ هوسئ دِي
٤ ستا غاړه دَ هاتِي دَ غاښونو دَ برج په دود دَه ٤
ستا سترګي دَ هغو ډنډونو په دود دِي چه په حشبون
کښې دَ بيت ربيم دروازي څخه دِي
ستا پوزه لکه برج دَ لُبنان دَه
چه دَ دمشق په لورِي نظر کوي
٥ ستا سر په تا باندِ دَ کرمل په شان دي ٥
او ستا دَ سر ويښته دَ ارغوان په شان دِي

بادشاه دَ ده په کاکل اسیر دیَ
۶ اي محبوبي دَ ښادیو دَپارَ ته څرنګ نازنینه اوخوشنما يُ
۷ دا ستا قد دَ کجوري په څیر دیَ
او ستا تِي دَ انګور دَ ژنګوریو په طَور دِي
۸ ما وویل چه زه به په دي کجوري وخیژم
او دَ هغه ښاخونه به ونیسم
ستا دواړه تِي دَ انګورو دَ ژنګوریو په دود وِي
او ستا دَ سا بوئي به دَ منړي غوندِ وِي
۹ او ستا تالو لکه عمده شراب
څما دَ محبوب دَپارَ قرار قرار و بهیږي
او دَ خوبیدلو په شونډو تیریږي

۱۰ زه دَ خپل محبوب یم
او دَ هغه خواهش په ما دیَ
۱۱ اي څما محبوبه راشه چه مونږ پټي ته ووزو
او په کلیو کښ شپه تیره کړو
۱۲ بیا وختي دَ انګورو باغونو ته لاړ شُو
او وګورُو چه تاک زرغون شوي دَي او غوټي يُ
پرانتلي دِي
او انارو ګلونه کړي دِي
هلته کښ به زه خپل محبّت درکړم
۱۳ باذنجان خوشبوي و باسي
او څمونږ په دروازو کښ هر قسم نوي او زړي
میوي دِي
چه ما ستا دَپارَ ذخیره کړي دِي اي څما محبوبه ÷

# اتم باب

ا کاشکي چه نه داسي وي لکه چه ځما ورور ۱
چه ځما دَ مور تِئ ئ و رودل
که نه مِ دَ باندِ وموندلي نو ښکل به مِ کړي
او هیڅا به سپک نه ګڼړلم
۲ زه به دِ راهنما شم او تا به دَ خپلي مورِ وکور ۲
نه بوزم
او هغه به را زده کړِي
زه به دَ خپلو انارو دَ رَس
له خپلو خوشبويو شرابو در وڅښوم
۳ دَ دي کینړ لاس ځما تر سر دَ لاندِ ۳
او ښَي لاس ئ را تر غاړه
۴ اي دَ اورشلیم لوڼړو زه تاسي ته قسم درکوم ۴
چه تاسي محبت و نه خوځوئِ او ويښ ئ نه کړئِ
څو چه ئ رضا وِي

۵ دا څوک دَي چه له بیابانه ۵
په خپل محبوب تکیه کړي راخیژي
ما نه دَ منړي دَ وني لاند ويښه کړي
هلته کښ ستا مور ته و زيږولي
هلته کښ ستا والده په لنګانه وه چه ته ئ وزيږولي

۶ ما دَ مُهر په دود په خپل زړه کښ لره او دَ مُهر ۶
په شان په خپل بازو باندي

څکه چه مینه دَ مرګ په دود زبردسته دَه
او غیرت دَ دوزخ غوندي سخت دیَ
لنبه يې دَ اور لنبه دَه
او دَ یهوه یوه شعله
۷ ز ډیري اوبه محبّت لره وژلي نه شِي
او نه يې سیلابونه غرقولي شِي
که څوک سرَي دَ خپل کور ټول مال دَ میني دَپارَ
ورکړي
نو هغه ټول په سپکاوِلي سره به سپک شِي

۸ ح څما یوه وړوکي خور دَه
چه تِي نه لري
مونږ دَ خپلي خور دَپارَ
هغه ورځ چه دَدې خبره وچلیږي څه وکړو
۹ ط که هغه دیوال شِي
نو مونږ به په هغه باندِ دَ سپینو زرو یو برج جوړ کړو
که هغه دروازه شِي نو مونږ به هغه دیوار په تختو
بند کړو

۱۰ ی زه یو دیوال یم
او څما تِي برجونو غوندِ دِي
نو زه دَ هغي په سترګي کښِ دَ هغه په دود وم چه سلامتي
يې موندلي دَه
۱۱ یا په بعل هامون کښِ دَ سلیمان تاکستان وُه
ده هغه تاکستان باغوانانو ته ورکړ

چه هر يو له هغوي نه دَ ميوي په بدلي کښ زر مثقال
سپين زر راوړي
۱۲ خما تاکستان چه خما دَي هغه خما دَ وړاندِ دَيَ ۱۲
اي سليمانَ تا لره يو زر دِي
او هغوي چه دَ هغه دَ ميوي نګهبان دِي دوه دوه سوه

۱۳ اي ته چه په باغونو کښ اوسي ۱۳
ملګرِي ستا آواز اورِي
ما ته ئي هم واوروه

۱۴ زر شه اي خما محبوبَ
دَ هغه غرځنئ يا هوسئ په شان شه چه دَ بلسانو
په غرونو باندِ دِي ❊

پښتو شوي له اصلي عبراني ژبي نه په قلم د غلام جلاني لکلي

נביאים

# كلام الله

## نبوت

## يشعيه نبي

په مطبع برتش ايند فارن
بيبل سوسيتي لندن او پيښور

T.J.L.M.

# دَ اشعیا نبي کتاب

## اول باب

۱ مکاشفه دَ اشعیا خوي دَ اَموص چه ده په یهوداه او په اورشلیم ۱
ولیده په ورځو دَ عزیاه او دَ یوتام او دَ آخز او دَ حزقیاه
بادشاهانو دَ یهوداه کښ

۲ اي آسمانو واورئ او اي زمکي غوږ ونیسه یهوه ویلي دي ۲
ما هلکان وپالل او ومې نمانځل لیکن دوي زانه سرکښ شوي دي
۳ غويي خپل خاوند پیژني او خر دَ خپل خاوند اخور مګر بني اسرائیل ۳
نه پیژني ځما خلق نه پوهیږي ۴ هَي هَي خطاکار قوم په ګناه لیبلي امّت ۴
دَ بدکارانو تخم دَ مفسدانو اولاد چه یهوه ئي پرېښو او دَ اسرائیل
قدّوس ئي سپک کړ او شا ئي ور وګرزوله

۵ تاسي به څه نور ووهلي شئ چه زیاته سرکښي وکړئ ټول ۵
سر رنځور او ټول زړه سُست دي ۶ دَ پښي له تلي نه تر سر پوري ۶
په کښ صحت نشته بلکه پرهارونه او زخمونه او خوږیني داني چه
نه بنکیمندلي او نه تړلي او نه په تیلو پاسته کړي شوي دي
۷ زمکه ستاسي خرابه او کلي ستاسي په اور سوي او ستاسي ۷
کروندي ستاسي دَ وړاند بیګانه خوري دغه خرابه ده لکه نسکورول
دَ بیګانه ؤ ۸ دَ صیحون لور پاتي شوي ده لکه جونګړه دَ انګورو په باغ ۸
کښ او لکه څاله دَ ختکو په پټي کښ او لکه ګیرکړي شوي ښهر
۹ که چري یهوه دَ لښکرو څښتن دپاره ووړوکي بقیه پرېښي نه وي نو ۹
مونږ به دَ سدوم په څېر او دَ عموراه په شان شوي وُو ۱۰ اي دَ ۱۰
سدوم حاکمانو دَ یهوه کلام واورئ اي دَ عموراه خلقو څښتن دَ الله
تورَیت ته غوږ ونیسئ ۱۱ ستاسي په ډیرو ذبیحو ځما څه شي یهوه ۱۱
وایي زه دَ مړونو له سیزونکو قربانو او دَ څربو حناورو له وازګو

۱۲ موړ یم او دَ سخوندرو او دَ وریو اوِ دَ بزو په وینو خوښ نه یم ۱۲ هرکله
چه تاسي ځما دَ وړاندِ دَ ښکاره کیدلو دَپارَ راځئِ نو ستاسي له
۱۳ لاسونو دا چا غوښتلي دِي چه ځما غولي ودربئِ ۱۳ زیاتي باطلي هدیي
مه راوړئِ له لوبانو مِ نفرت دي دَ نوي مياشتي او دَ سبتونو او دَ
۱۴ مجلسونو دَ آوازونو زه دَ گناه او دَ اعتکاف زغم کولي نه شم ۱۴ زړه مِ
ستاسي له نویو میاشتو او ستاسي له عیدونو نفرت کوِي دا په ما
۱۵ باندِ پیټي شه له پورته کولو ئي ستړي شوم ۱۵ هرکله چه تاسي
خپل لاسونه اوږده کوئِ نو زه به خپلي سترگي در نه پټي کړم هو
هرکله چه تاسو نموځ ډیروئِ نو زه به وا نه ورم چه ستاسو لاسونه
۱۶ له وینو ډک دِي ۱۶ خپل‌ځان پرِی وینځئِ پاک ئي کانړئِ خپل بد کارونه
۱۷ ځما دَ سترگو له وړاندِ لرِي کړئِ ۱۷ بد عمل کول پرېږدئِ نیکي کول زده
کړئِ انصاف لټوئِ دَ مظلومانو رهنمائي دَ یتیمانو انصاف کوئِ دَ
کونډو حامي شئِ

۱۸ ۱۸ راشئِ که نه چه مونږ ښبله حجتونه وکړو یهوه وائي اگر که
ستاسي خطا وي دَ قرمزو په شیروي دَ واوري په شان به سپیني شي او
۱۹ که دَارغوان په شان سري وِي دَ وړیو په شان به شي ۱۹ که تاسي
۲۰ راضِي او اوریدونکي شئِ نو دَ زمکي ښیگړه به وخورئِ ۲۰ لیکن که
تاسي انکار وکړئِ او یاغیان شئِ نو تاسي به په توري ونغرلي شئ
ځکه چه دَ یهوه خولې فرمایلي دِي

۲۱ ۲۱ هغه امانت‌داره آبادِي څرنگه زانِي شوه هغه چه په انصاف
ډکَ وَه او صداقت په کښ شپه تیروله لیکن اوس خو خونیان دِي
۲۲ ۲۲ ستا سپین زرکوټه شول ستا شراب له اوبو سره گډ شول
۲۳ ۲۳ ستا سرداران یاغیان او دَ غلو شریکان دِي هر یو په رشوت
مینه کوِي او دَ پیښکښي طلب کوِي دَ یتیمانو انصاف نه کوِي او
دَ کونډو فریاد دوي ته نه رسي

۲۴ ۲۴ دي دَپارَ یهوه دَ لښکرو رب چه دَ اسرائیل قادر دَي
فرمائي هو زه به له خپلو غلیمانو په آرام شم او له خپلو دښمنانو
۲۵ به بدله واخلم ۲۵ او زه به خپل لاس در اوړد کړم او ستا خیري به
۲۶ پاک کړم لکه په نوشادر او ټول خچ به دِ درنه بیل کړم ۲۶ او زه به
ستا قاضیان دَ وړاندِ په شان وګرزوم اوِ ستا مشیران به دَ اول
په شان نو پس له دغه به ته دَ صداقت ښهر او امانتداره آبادي
۲۷ بللي شي ۲۷ صیحون به دَ عدالت په سبب فدیه موي او توبه‌کاران به
۲۸ ئي په صداقت سره ۲۸ او هلاکت دَ ګناهکارانو او دَ خطاکارانو به یو
۲۹ رنګ وِي او دَ یهوه پرېښوونکي به فنا شي ۲۹ ځکه چه دوي به له
هغو بلوطو چه تاسو خوښ کړي دِي خجل شي او تاسو به له هغو
۳۰ باغونو چه تاسي پسند کړي دِي شرمنده شيُ ۳۰ او تاسو به دَ هغو
بلوط غوندِ شيُ چه پاڼي ئي مړاوي وِي او دَ هغه باغ په شان
۳۱ چه اوبه نه لري ۳۱ او قوّتناک به دَ سڼ په شان شي او کارونَ به
ئي بڅري او دواړه به سره وسوځي او هیڅوک به ئي مړ نه کاندِ ۞

# دویم باب

۱ ۱ هغه خبري چه اشعیاه ځوي دَ اموص دَ یهودا او دَ اورشلیم په حق
کښ ولیدي

۲ ۲ په آخرو ورځو کښ به داسي وشي چه دَ یهوه دَ کور غر به
دَ غرونو په سر ودراوه شي او له غونډیو به اوچت کړي شي او ټول
۳ قومونه به ور بهیږي ۳ او ډیر امّتونه به ور روان شي او و به وائي
راشيُ موږ به دَ یهوه په غرِه باندِ وخیژو او دَ یعقوب دَ الله کور ته
تاچه دي موږ ته خپلي لاري را وښیي او موږ به دَده په لاروځو ځکه
۴ چه تورات به له صیحون او دَ یهوه کلام به له اورشلیم راووزي ۴ او دَ
قومونو په مینځ کښ به عدالت وکړي او په ډیرو امّتونو حکم به وکړي
او دوي به له خپلو تورو سسپارونه وټکوي او له خپلو برچو لرونه

او یو قوم به په بل قوم توره نه پورته کړي او بیا به هیچري جنګونه
نه زد کوي
۵ ۵ اي دَ یعقوب کورَ راشه که نه چه مونږ دَ یهوه په نورکښې
۶ لاړ شو ۶ تا خو خپل امت دَ یعقوب کور پریښود ځکه چه دغه له شرق
ډک دي او دَ فلسطیانو په دود فالبینان دي او دَ بیګانهٔ له ځامنو
۷ سره لاس وهي ۷ دَ دوي زمکه له سرو زرو او دَ سپینو ډکه ده او
دَ خزانو ئې هیڅ انتها نشته او ملک ئې له اسونو ډک دي او دَ ګاډیو
۸ ئې هیڅ حد نشته ۸ او زمکه ئې له بتانو ډکه ده او دَ خپلو لاسونو
۹ کار ته او دَ خپلو ګوتو کاریګرې ته سجده کوي ۹ او وړوکي سړي ټیټیږي
۱۰ او غټ سړي ذلیل کیږي او ته دِ ونه بخښې ۱۰ ته په غره کښې ننوزه
او په خاورو کښې پټ شه دَ یهوه دَ دهشت له سببه او دَده دَ
۱۱ لوي بزرګۍ له جهته ۱۱ دَ انسان دَ کبرجنې سترګې به ټیټې کړې شي
او دَ انسان مغروري به کوزه کړې شي او هغه ورځ به یهوه یواځې
۱۲ سربلند وي ۱۲ ځکه چه دَ یهوه دَ لښکرو به یوه ورځ وي په هر یوه
کبرجن او هسک کتونکي او په هر پورته کړی شوي او هغوئ به کوز
۱۳ کړي شي ۱۳ او په ټولو نښترو دَ لبنان چه هسک او اوچت دي او
دَ بسن په ټولو بلوطونو باندې ۱۴ او په ټولو اوچتو غرونو باندې او په واړو
۱۵ لوړو باندې ۱۵ او په هر یوه اوچت برج باندې او په هر محکم دیوال
۱۶ باندې ۱۶ او دَ ترسیس په ټولو جهازونو او په ټولو ښائسته صورتونو
باندې او دَ انسان غرور به کوز کړې شي او دَ خلقو هسک کتل به ټیټ
۱۷ کړي شي ۱۷ او هغه ورځ به یهوه یواځې سربلند وي او بتان چه دي
۱۹ بالکل به زایل شي ۱۹ او دَ غرونو په غارو کښې او دَ زمکې په چاودو
کښې به ننوزي دَ یهوه له ویرې او دَده دَ بزرګۍ له دبدبې نه هرکله چه
۲۰ دي پورته شي چه مزکه ریزمریز کړي ۲۰ هغه ورځ به سړي خپل
دَ سپینو زرو او دَ سرو زرو بتان او صورتونه چه دَ ځیلې سجدې کولو

۲۱ دَ پاره ئي جوړ کړي دِي دَ ړندو صږو او دَ ښاپيرکو دَ وراند وغورزوي ۲۱ تا
چه دَ غوندږو په غاروښو او دَ کمرو په چاودو کښې ننوزي دَ يهوه له ويري
او دده دَ بزرگي له دبدبي نه هرکله چه دي پورته شي تا چه زمکه ريز
۲۲ ريز کړي ۲۲ پس تاسي له انسانَ چه ساه ئي په سپږمو کښې ده لري
شئِ ځکه چه دَي په څه حساب دَي ❖

# دريم باب

۱ آولي گورئِ يهوه رب دَ لښکرو به له اورشليم او له يهوديي نه تکيه
۲ او امسا بوله تکيه دَ ډوډئِ او بوله تکيه دَ اوبو به واخلي ۲ ښاغلي او
۳ جنگيالي سړي او قاضي او نبي او تعبير کوونکي او زوړ ۳ دَ پنځوس سردار
او معتبر او صلحکار او په کاريگري کښې ماهر او په پاړوکړي کښې پوهان
۴ ۴ او زه به هلکان په هغو سرداران کړم او ماشوم هلکان به حکم بر
۵ کوي ۵ او خلق به يو په بل ظلم کوي او هريو به په خپل همسايه تعدي
کوي او ځوانان به په زړو او کم اصل به په عزّتمندو پوري توقي کوي -
۶ ۶ او که کوم سړي دَ خپل پلار له کورَ دَ خپل ورور لمن ونيسي ورته
ووايي چه ته خو جامي لري راشه ځمونږ حاکم شه او دا خانه خراب به
۷ هم ستا تر لاس لاندي وي ۷ هغه به ناري وکړي په دغي ورځي کښې
به ووايي چه زه به تاسي ته شفا رسونکي نه شم ځکه چه ځما په کور کښې
۸ نه ډوډئِ شته نه جامه تاسو مِ دَ خلقو مه حاکم کوئِ ۸ ځکه چه
اورشليم و لړزيده او يهودا ونړيده ځکه چه دَ دوي ژبه او عملونه له
۹ خداوندَ مخالف دِي او دَده دَ بزرگي سترگي ئي غضبناکي کړي ۹ دَ دوي دَ
مخ رنگ په دوي گواهي لي او خپل گناهونه دَ سدوم په دود ظاهروي
او نه ئي پټوي هَي هَي دَ دوي په ځانو باندِ ځکه چه دوي دَ خپل ځان
۱۰ دَ پاره بدي کړي دَه ۱۰ صادق ته ووايئِ خير دِ وِي ځکه چه دي به دَ خپلو
۱۱ کارونو ميوه خوري ۱۱ هَي هَي په شرير شر به وِي ځکه چه دده دَ لاسونو
۱۲ گټه به په ده وکړي شي ۱۲ ځما امّت چه دي هلکان ظلم پري کوي او

بنتې به حکم پرې چلوِي اې څما اُمّتَ تاسې خپل مرشدان بدراه کوِي
۱۳ او ستاسې دَ تلني لارې نغرې ۱۳ بهوه ولاړ دې چه مقدمه پیښه
کړِي او دَ خلقو عدالت کولو ته ولاړ دې بهوه به دَ خپل اُمّت دَ غټانو
او دَ سردارانو سره عدالت کولو ته ننوزِي
۱۴ ۱۴ تاسې هغه يئِ چه تاکستان مو خوړلي دي او دَ عاجزانو لوټونه
۱۵ ستاسې په کورونو کښ وِي ۱۵ ستاسې څه شوِي دِي چه څما بندګان
پايمال کوئِ او دَ غريبانو څانونه ميده کوئِ بهوه رب دَ لښکرو وايي
۱۶ ۱۶ او بهوه بيا وايي دَپاره دَدې چه دَ صيحون لونړې کبرجني او په
۱۷ اوږدو کړيو غاړو او په غمزوناکو سترګو دَرومي ۱۷ او په خپل رفتار کښ
۱۸ دَ ناز يون کوِي او په خپلو پښو کښ ګونګرې شرنګوِي څي ۱۸ دې دَپاره به
بهوه دَ صيحون دَ لونړو ګکرئِ ږکې کړِي او بهوه به يې ستر عورت برښدې کړِي
هغه ورځ به بهوه دَ هغو دَوښيو ښايست او کوڅي او تکمي لرې کړِي
۱۹ ۲۰ ۱۹ او ډيډې او کنګړ او برقې ۲۰ او سربندونه او زنځيرونه او کمربندونه
۲۱ ۲۲ او عطردانونه او تعويذونه ۲۱ او ګوتي او دَ پوزې ننکئِ ۲۲ او دَ زربفتو
۲۳ پوښاکونه او شالونه او کيڅئِ ۲۳ او آئيني او قميصونه او پګړئِ او سالوګان
۲۴ ۲۴ او داسې به وشي چه دَ خوشبوئِ په بدل کښ به ګند وِي او دَ
کمربند په ځاي به شيړئِ او دَ اوربل په بدل به پکوالي او دَ انګريئِ
په ځاي به دَ شيړئِ کمربند وِي او دَ حسن په ځاي به سوې داغ وِي
۲۵ ۲۵ ستا سړِي به په تورو پرېوزي او ستا پهلوانان به په جنګ کښ ـ
۲۶ ۲۶ دَ هغه دروازي به ژړا او وِيرکوِي او دغه خواره په خاورو کښ به کښېنِي*

## څلورم باب

۱ ۱ هغه ورځ به اوه ښځي يو سړي ونيسي ورته وبه وايي چه مونږ به
خپله ډوډئِ خورو او خپلي جامي به آغوندو ښځ چه ستا نوم په مونږ
وبللي شي چه پېغور مو لرې کړِي
۲ ۲ په هغه ورځ به دَ يهوه غوړکه زينت او جلال وِي او دَ زمکې

۳ میوه به دَ بني اسرائیل دَ خلاصو شویو دَپارَ فخر او جمال وِي ۳ او داسي
به وشي هغه چه په صیحون کښ پرېښودلي شوي دِي او په اورشلیم
کښ پاتي شوي دِي قدّوس به بللي شي بلکه هر یو چه دَ اورشلیم
۴ په ژوندیو کښ ولیکلي شي ۴ هغه وقت چه خداوند دَ صیحون دَ لوڼو
کندګي پرېونځي او دَ اورشلیم وینې پاکي کړي د ده په مینځ کښ په روح
۵ دَ عدالت او په روح دَ سوزني ۵ نو به یهوه بیا دَ صیحون دَ غره په
هر یو مکان باندِ او دده په پاکو مجلسو باندِ ورځي ته یوه اوریځ او یو
لوګي او شپې ته به یوه دَ بلیدونکي اور شعله پیدا کړي ځکه چه په هغه
۶ ټول جلال به پناه وِي ۶ او په هغه ورځ به له ګرمي نه دَ سیورې
دَپارَ ځاله وِي او دَ سیلاب او دَ باران دَپارَ به پناه‌ګاه او پرده وِي*

# پنځم باب

۱ آ اوس به زه دَ خپلي محبوبي دَپارَ دَ خپلي محبوبي یو غزل ددي دَ انګورو
دَ باغ په باب کښ ووایم که نه ځما دَ محبوبي دَ انګورو باغ په ځرني غونډۍ
۲ باندِ وه ۲ او دې هغه وکنود او کاڼړي ئې ترِ ویستل او کشمشي تاکونه
ئې په کښ ولګول او په مینځ کښ ئې برج جوړ کړ او یو حوض ئې هم
په کښ وتراشه او ورته کتل ئې چه انګور به کښ ولګیږي لیکن په
۳ هغه کښ لیوني انګور و ټوکیدل ۳ اوس اي دَ اورشلیم اوسیدونکیو
او دَ یهوداه سړیو تاسو ځما او ځما دَ انګورو دَ باغ په مینځ کښ انصاف
۴ وکړئ که نه ۴ چه ما دَ خپلو انګورو دَ باغ دَپارَ څه زیاتولي شول چه
ما په کښ و نه کړل او اوس چه ما ورته انتظار کاوه چه انګور به
۵ وکړي نو ولي ئې دا لیوني انګور راوړل ۵ نو اوس به زه تاسي وپوهوم
که نه چه زه به بي په خپل تاکستان وکړم دَ هغه کیږ به وکاږم او
هغه به دَ څړیدلو دَپارَ شي دَ هغه دیواره به ونړوم او هغه به دَ
۶ پایمالي دَپارَ شي ۶ او زه به ئې خرابه کړم چه نه به قلم کیږي او نه به
کنودلي شي نو به کروندي او اغزي ټوکيږي او زه به هم اوریځي ته حکم

۷ وکړم چه باران نه پرِ واورِوي ۷ نو دَ یهوه دَ لښکرو دَ انګورو باغ چه
دي دَ اسرائیل کور دي او دَ یهودا سړِي دَ هغه نازک بوټِي دِي هغه
انصاف ته انتظار وکړِ لیکن ګوره ظلم دي هغه صداقت ته لیکن
ګوره چیغه

۸ ۸ هَي هَي په هغو بانډِ چه کور لهِ کور سره پیوست کړِي او ټپي
له پټِي سره نزدي کړِي تر هغه پوري چه ځاي پاتي نه شي او تاسي
۹ پرِیښودِلِي شئ چه دَ زمکي په مینځ یواځي اوسئ ۹ یهوه دَ لښکرو ځما په
غوږو کښ وویل چه په رښتیا سره به ډیر کورونه وران شي لوي او
۱۰ ښائسته به بي اوسیدونکیو شي ۱۰ چه له لسو قلبو تاکستانَ به تش یو
من شراب حاصل شي او له لس منَ تخمَ به هله یو من غله

۱۱ ۱۱ هَي هَي په وقتي پورته کیدونکیو دَ صباح چه په نشه پسي
۱۲ روان شي او دَ شپي په روڼوونکیو چه شراب ئې وسوزوي ۱۲ او دَ هغو
په جشن کښ ستار او رباب او طنبل او شپیلۍ او شراب دي مګر
هغوي دَ یهوه کار ته نه ګورِي او دده دَ لاسو په کاریګرِي نظر نه کړِي
۱۳ ۱۳ دي دَپارَ ځما امّت بندیوان ځي چه پوه نه لرِي او اشراف ئې به لوږه
۱۴ مرِي او عام ئې له تندي وچیږِي ۱۴ پس دوزخ خپل ستوني ارتوِي او
خپله خوله بیحده وازوِي او په دغه کښ دَ هغو دبدبه او عام او غوغا
۱۵ وهونکي ټولي او هر یوچه په کښ ښادِي کونکي دَي کوز شي ۱۵ او وړوکي
سړي ټیټ کیږِي او غټ سړِي کوز کیږِي او دَ مغرورانو سترګي ښکته
۱۶ کیږِي ۱۶ او یهوه دَلښکرو په عدالت کښ سربلند کیږِي او دَ قدوس الله
۱۷ تقدیس په صداقت سره کیږِي ۱۷ نو ورِي به داسي ځرِي لکه په خپلي
چراګاه کښ او دَ غټانو خرابه به بیګانه خورِي

۱۸ ۱۸ هَي هَي په راکاږونکو دَ بدِي په طناؤنو دَ بطلان او خطا
۱۹ لکه په رسیو ګاډیو ۱۹ په هغو چه وایِي چه دي دِ تلوار وکړِي او زر
دِ خپل کار وکړِي چه مونږ وینو او دَ اسرائیل دَ قدّوس مصلحت دِ

را نژدي شي او را دِ شي تا چه وئي پيژنو
۲۰ ۲۰ هَي هَي په هغو بانډِ چه بديءِ ته نيکي او نيکي ته بديءِ وايي
او نور تياره او تياره نور گرزوي او تارخه خواږه او خواږه تارخه گرزوي
۲۱ ۲۱ هَي هَي په هغو بانډِ چه په خپلو سترگو خپل ځان دانا او په
خپل فهم کښ ئي دَ تميز خاوند گنړي
۲۲ ۲۲ هَي هَي دَ شرابو دَ څښلو په بهادرانو او دَ تشي دَ گډولو
۲۳ دَ پهلوانانو ۲۳ چه دَ رشوت دَ پاره شريران صادقوي او له صادقانو دَ دوي
۲۴ صدق شوکوي ۲۴ نو لکه چه دَ اور لنبه پروړه خوري او لکه وچ واښه
له لنبي پريوزي هم هسي به دَ دوی بيخ وروست شي او غوټيءِ به
ئي دَ گرد په دود والوزي ځکه چه دوي تورات دَ يهوه دَ لښکرو ناځيز
او دَ اسرائيل دَ قدوس کلام ئي سپک وگاڼه
۲۵ ۲۵ دي دَ پاره دَ يهوه قهر په امت خپل بل شه او ده په هغه
بانډِ خپل لاس اوږد کړ او هغه ئي داسي ووهه چه غرونه ولړزيدل
او دَ هغه جثي داسي شوي لکه دَ کوڅو گندگي او سره له دي ټولو
دَده غضب ونه گرزيده بلکه لا تر اوسَ پوري ئي لاس اوږد دي ـ
۲۶ او دي به دَ قومونو دَ پاره له لري يو نشان پورته کړي او دوي ته به دَ
۲۷ زمکي له آخرَ شپيلکيَ ووهي او گوره دوي به زر په دو ورشي ۲۷ به
هغو کښ به نه څوک ستومانه نه ښوئيدونکي وي او نه به پرناکيږي
او نه اوده کيږي او نه به ئي کمربند خلاصيږي او نه به ئي دَ پڼو تسمي
۲۸ پريکيږي ۲۸ هغوي چه غشي ئي تيره دي او ټولي لندي ئي ټکيدلي دي دَ
هغو دَ آسونو سمونه به دَ بکريءِ په شان گنړلي شي او څرخونه به ئي
۲۹ دَ بربوکيو په شان ۲۹ غرمبا به ئي دَ زمري دَ غرمبا په طور وي هو
هغوي به دَ ځوانانو زمريو غوندِ غرا او غوريږ کوي او ښکار به نيسي
۳۰ او بيدريغه به ئي وړي او هيڅوک به ئي خلاصونکي نه وي ۳۰ او هغه
ورځ به دوي داسي وغريږي لکه دَ قعرِ درياب غريدل او که زمکي ته

وكتلي شي نو گوره تياره او تنگي دَه او نور دَ هغه په اوريځو كښ تاريک شه

## شپږم باب

١ آ هغه كال چه عزياه بادشاه مړ شه نو مِ خداوند په يوې لوئي لوړي
باندِ او به اوچت تخت ناست وليد او دَ جامو لمني ئي هيكل ډک كړ
٢ ٢ او سرافيم پرِ دَپاسَ ولاړ وو او دَ هر يوه شپږ شپږ وزر وو او په
دوو به ئي خپل مخ پټ كاوه او په دوو به ئي خپلي پښي پټولي او په
٣ دوو به الوتلي ٣ او دغه به هغه بل ته ناري وهلي ويل به ئي قدّوس
٤ قدّوس قدّوس يهوه دَ لښكرو تموله زمكه دده له جلالَ ډكه دَه ٤ او
دَ ناري وهونكي له آوازه بنيادونه دَ آستانو وخوځيدل او كور له لوګي
٥ ډک شه ٥ نو ما وويل هَي هَي په ما باندِ زه خو برباد شوم ځكه چه
زه دَ ناپاكو شونډو سړيو او دَ ناپاک شونډي امّت په مينځ كښ
اوسيدونكي يم ځكه چه ځما سترګو بادشاه يهوه دَ لښكرو وليد
٦ ٦ نو يو دَ سرافيمو نه راوالوت او په لاس كښ ئي سكروټه چه له
٧ مذبح ئي په نوسي راخستي وَه ٧ او چه ځما خوله ئي مسه كړه وئي ويل
گوره دي ستا شونډي مسه كړي نو ستا گناه دفعه شوه او ستا دَ
٨ خطاكفاره شوه ٨ اود يهوه آواز مِ واوريده چه ويل ئي زه څوک واستوم
٩ او څموږ دَپارَ به څوک لاړ شي نو ما وويل ما گوره وامِ ستوه ٩ نو
هغه وويل لاړ شه او دي امّت ته ووايه چه تاسي په اوريدلو اوريږِ
١٠ او مه پرِ پوهيږئِ او په كتلو گوريِ او مه ئي پيژنِئ ١٠ نو ته دَدي
امّت زړه څورب كړه او غوږونه ئي درانه كړه او سترګي ئي بندي كړه
هسي نه چه په خپلو سترګو ووينِي په خپلو غوږونو واوريِ او په
١١ خپلو زړونو كښ وپوهيږِي او راوګرزي او شفا مومي ١١ نو ما وويل
اي خداوندَ تر كومه پوري وئي ويل تر دي چه ښهرونه خرابي او بي
١٢ اوسيدونكي شي او كورونه بي سړو شي او زمكه بودي بيدياشي ١٢ او
١٣ يهوه آدميان لري كړي او دَ زمكي په مينځ كښ خرابي ډيره شي ١٣ او

که په هغه کښې لسمه پاتې شي نو هغه به هم راوګرزي او وبه خوړلې
شي دَ هغه بطم او بلوط په شان به وِي چه که پرېکړي شي نو هم
يوه تنه يُې پاتې شي او تنه به يُې مقدّس تخم شِي ٭

## اوم باب

۱ آ او دَ يهوداه بادشاه دَ آخز ځوي دَ يوتام ځوي دَ عزياه په ورځو کښې
داسي وشول چه دَ ارام بادشاه رضين له فقح ځوي دَ رمليا بادشاه دَ
اسرائيل سره په اورشليم بانِدِ دَ جنګ دَپارَ وختو او نه وتوانيدُ چه
۲ ورسره وجنګيږي ۲ نو دَ داوُد کور ته خبر ورکړي شه او ورته وويلي
شول چه ارام په افرائيم کښې کېږ شه نو دَ بادشاه زړه او دَ ده دَ امّت
زړونه داسي ورپيدل لکه چه دَ ځنګل وني دَ باد له مخ نه رپيږِي
۳ ۳ نو يهوه اشعياه ته وويل چه ته او ستا ځوي شارياشوب
دَ آخز دَ ملاقات دَپارَ دَپاس تالاؤ دَ والي په سر دَ دوبيانو دَ پټي
لاري ته ورووزيِ او ورته ووايه خبردار او په قرار شه مه ويريږه
او دَ دغو لوګي کونکو ځونټيو له لکيو نه دَ رضين او دَ آرام او دَ رمليا
۵ دَ ځوي دَ غضب له ګرمي نه دِ ستا زړه ضعيف نه شي ۵ په دي سبب
چه ارام ستا په خلاف دَ شر مصلحت کړي دَي افرائيم او دَ رمليا له
۶ ځوي سره وايِي ۶ موږ به په يهودا بانِدِ وختو او وبه يُې رټوو او دَ
ځان دَپارَ به رخنه په کښې وکړو او دَ طابئيل ځوي به دَ هغه په مينځ
۷ کښې بادشاه ودروو ۷ خداوند يهوه داسي وايي چه هغه به ونه دريږي
او نه به وِي
۸ ۸ ځکه دَ آرام سر دمشق او دمشق سر رضين او دَ پنځو شپيتو
۹ کالو په مُدي کښې به افرائيم داسي مات شي چه امّت به نه وِي ۹ دَ
افرائيم سر سمرون دي او دَ سمرون سر دَ رمليا ځوي که تاسي ايمان
رانه وړئ نو په امان به نه شيُ
۱۰،۱۱ ۱۰ او يهوه آخز ته کلام وکړ و يُې ويل ۱۱ چه له يهوه الله نه دَ

خان دَپارَ څه نخبنه وغواړه یا خپله غوښتنه په ژورو کښې یا په اوچته
۱۲ کښې وکړه ۱۲ لیکن آخز وویل چه زه یې نه غواړم او یهوه به و نه آزمایم
۱۳ ۱۳ او و یې ویل اي د داؤد کوره واورئ دَ سړي ستړیول تاسو ته لږ
څه ښکاریږي څه ؟ چه سړي ستړي کوئ ترڅو چه څما الله هم ستړي
۱۴ کړئ ۱۴ او دي دَپارَ به خداوند په خپله تاسي ته یوه نخبنه درکړي گورئ
پیغله به حامله شي اوځوي به وزیږوي او دَ هغه نوم به عمانوئیل بولي
۱۵ ۱۵ هغه به کوچ او ګبینه خوري ترهغه پوري چه بد ترک کول او نیکي
۱۶ اختیارول وپیژني ۱۶ لیکن له هغه وړاندِ چه دا هلک دَ بدو ترک کول
اودَ نیکي اختیارول وپیژني هغه زمکه چه ته یې له دواړو بادشاهانو
۱۷ په آزار یي ورانه به شي ۱۷ یهوه به په تا او ستا په امّت او ستا دَ
پلار په کور داسي ورځ راولي چه له هغي ورځي چه افرائیم له یهوداه
بیل شه تر نن پوري یې هیڅري راوستلي نه ده
۱۸ ۱۸ او هغه ورځ به داسي وشي چه یهوه به دَ رودِنیل له پوري
غاړي نه مچانو ته او دَ اسور په زمکه کښې بمبرانو ته شپیلکي وکړي
۱۹ ۱۹ او هغه ټول به راشي او په خرابو خوړو کښې او دَ کمرو په چاودو کښې
او په ټولو اغزو کښې او په ټولو څراګاهو پنډیږي
۲۰ ۲۰ هغه ورځ خداوند په کرایه کړي چړي دَ دریاب په پوري خوا
دَ آسور دَ بادشاه سر ویښته او دَ پښو وخریي او ږیره به یې هم صفا کړي
۲۱ ۲۱ او هغه ورځ به داسي وشي چه څوک سړي به یوه غوا او دوي
۲۲ ګډي و ساتي ۲۲ او داسي به وشي چه هغوي به دَ پیو له کثرت کوچ خوري
دي دَپارَ هر یو چه په زمکه کښې خلاص پاتي شي کوچ او ګبینه به خوري
۲۳ ۲۳ او هغه ورځ به داسي وشي په هر ځاي کښې چه یو زر تاکونه
۲۴ وي چه زر روپئ ارزي هلته به کروندي او اغزي وي ۲۴ هلته کښې
به له غشو او لندو سره راشي چه ټوله زمکه به کروندي او اغزي
۲۵ وي ۲۵ هغه ټول غرونه چه په کهئ کنودل کیږي ته به دَ کروندو

او اغزو له وبري ور نه ځي نو به هغه دَ غوايانو دَ تللو او دَ ګډو دَ پايمالولو
دَپاره ځي ❊

# اتم باب

۱ آ او يَهُوَه ما ته وُوِ چه ته دَ ځان دَپاره لويه تخته واخله او دَ
۲ سړي په قلم پرِ وليکه چه دَ مهيرشالال حاش بز دَپاره ۲ او زه به
دَ ځان دَپاره امانت‌دار شاهدان کړم (يعني) عورياه کوهن اوذکرياه ځوي
۳ دَ يبرکياه ۳ نو زه نبيّي ته ورنږدي شوم او هغه حامله شوه او زوي
ئي وزيږاوه او يهوه ما ته وويل چه دَ دغه نوم مهيرشالال حاش بزه
۴ وبوله ۴ ځکه چه وړاندِ له هغه چه دغه هلک اي ځما پلارَ ځما موري
په بللو پوه ځي دَ دمشق مال او دَ سمرون لوټ به دَ اسور دَ بادشاه
دَ وړاندِ وروړي ځي
۵ ۶ ۵ بيا يَهُوَه راته وُوِ دي دَپارَ چه دي امّت دَ شلواح اوبه چه
ورو ورو بهيږي سپکي کړي او په رضين او دَ رمليا‌ه په ځوي خوښ شول
۷ دي دَپارَ ګوره چه خداوند به په دوي باندِ دَ لوي او دَ فراوان درياب
اوبه دَ اسور بادشاه او دَ هغه ټوله دبدبه راوخيژوي او هغه به له ټولو
۸ نالو دَ دوبو پاس وخيژي او په ټولو غارو خپلو به تير ځي ۸ او يهوداه ته
به ورټوپ کړي اوو به بهيږي او ترغاړي به ورسيږي او دَ هغه دَ پرونو
غوړيدل ستا دَ زمکي ټول سور عمّانوئيلَ ډک کړي
۹ ۹ اي امتونو غوړيږ وکړئِ او مات به شئِ اي دَ ټولو هوادونو دَ زمکي
غوږ ونيسئِ اوخپلي ملا وتړئِ او مات به شئِ خپلي ملا وتړئِ او مات
۱۰ به شئِ ۱۰ په مصلحت سره مصلحت وکړئِ ليکن باطل به کړي ځي به خبرو
۱۱ سره خبري وکړئِ مګر تم به نه ځي ځکه چه الله له مونږ سره دَي ۱۱ دي
دَپارَ يهوه ما ته په سخت لاس داسي وويل او تنبيه ئي کړم چه ددي امت
۱۲ په لارِ لاړ نه شم وئي ويل ۱۲ چه ته هر هغه څه ته چه دا خلق فتنه
وايي فتنه مه ورته وايه او دَ هغه له ويري ويره مه کوه او مه ترسيږه

۱۳ ۱۳ د یهوه د لښکرو تقدیس وکړئ هم هغه دِ ستاسو ویره او ستاسو
ترس وِي
۱۴ ۱۴ هغه به یو مقدس وِي او د اسرائیل د دواړو کورونو د پاره به
د سټکرِ کاڼړي او د ښوئیدلو کمر وِي او د اورشلیم د اوسیدونکو د پاره
۱۵ به دام او جال ۱۵ ډیر به په هغه وښوئیږي او و به پرزِي مات به
۱۶ شِي او و به نیښلِي او و به نیولي شِي ۱۶ شاهدِي نامه بنده کړه شما په
۱۷ شاګردانو کښ په تورات مُهر ولګوه ۱۷ زه به هم د یهوه لار ګورم چه او س
۱۸ د یعقوب له ټبر خپل مخ پټوِي زه به د ده انتظار کوم ۱۸ ګوره زه او
هغه هلکان چه یهوه ما ته راکړِي دِي د یهوه د لښکرو له
لورې نه چه د صِیون په غوره کښ ساکن دي د بني اسرائیلو په مینځ
کښ د نخښو او د عجائبو د پاره یو
۱۹ ۱۹ او هرکله چه دوي در ته ووایِي چه تاسو د دیوانو د یارانو او د
منتریانو چه چغکي بړبړي کوِي تلاش وکړئ چه ګنړه خلق دِ له خپل الله طلب
۲۰ و نه کړِي څه؟ ایا مړو ته دِ د ژوندیو د پار سوال وکړي شِي څه؟ ۲۰ او
شاهدئِ نامي ته او تورات ته که دوي د دي تول په شان و نه وایِي
۲۱ نو د دوي د پار سحر نشته ۲۱ پس دوي به په هغه کښ تنګدست او
وږي تیریږي او داسي به وشِي هرکله چه دوي وږي شِي نو له خپل
ځانَ به بیزار شِي او په خپل بادشاه او په خپل الله به لعنت کوِي
او پورته به مخ کړِي او زمکي ته نظر وکړِي او څه ګورِي سختي او تاریکي
عذاب د تنګسِي او ګنړي تاریکي ته به و شړلي شِي ✦

## نهم باب

۱ ۱ لیکن د هغي د پار چه په تنګِي وه تیاره به نه وِي لکه چه ده په
وړاندنئِ زمانې کښ د زابلون او د نفتالِي زمکه سپکه کړه لیکن په
آخره کښ به د دریاب لار د اردن پوري غاړه جلیل د قومونو جلال دار
۲ کړي دي ۲ هغه خلق چه په تیاري کښ تلونکي دِي عظیم نور ئي

ولیدِ او په هغو باندِ چه دَ مرګ دَ سوري په زمکه کښِ کښیناستونکي دِي
نور وځلیده ۳ تا قوم ډیر کړ او تا دَ هغه دَپارَ خوښِي لویه کړه هغوي ۳
ستا دَ وړاندِ داسي خوښیږِي لکه خوښِي په لوکښِ او لکه چه دَ لوټ په
ویشلو کښِ سړِي خوښیږِي ۴ ځکه چه تا دَ هغه دَ پېټي زغ او دَ هغه دَ ۴
اوږي همسا او دَ هغه دَ نیونکي سوټي داسي مات کړ لکه دَ مدیان
په ورځي ۵ ځکه چه ټولي وسلي دَ وسلي دارو په غوغا کښِ او ټول په وینو ۵
لړلي ځادر به دَ سولو دَپارَ دَ اور بالن شِي ۶ ځکه چه ځمونږ دَپارَ یو هلک ۶
وزیږیدلي شه او مونږ ته یو ځوي راکړي شه او سلطاني به دَ هغه په اوږو
باندِ وِي او به دي نوم به بللي شِي ۷ عجیب مشیر قادر الله ۷
پلار ابدي دَ سلامتي سردار دَده دَ
سلطانِي دَ زیاتیدلو او دَ سلامتِي به هیڅ انتها نه وِي دَ داؤد په کرسِي
او په بادشاهِي باندِ تا چه هغه په حق او په صداقت سره له اوسَ تر
ابدَ پوري ټینګ او مضبوط کړِي دَ لښکرو دَ خداوند غیرت به دا وکړِي
۸ پروردګار په یعقوب کښِ یوه خبره واستوله په اسرائیل کښِ ۸
وشوه ۹ نو ټول امّت که افرائیم که اوسیدونکي دَ سمرون دِي وبه پوهیږي ۹
هغوي چه په کبرجني او په لويي دَ زړه وايِي ۱۰ چه خښتي پریوتلي نو مونږ به ۱۰
په تراشلو کاڼو آبادِي وکړو دَ انځیري ونه پریکړي شوه مونږ به دَ هغي
په ځاي نښتر ولګوو ۱۱ نو خداوند به دَ رضین مدعیان پر وَخیژوي او ۱۱
دښمنان به ئي ولمسوِي

۱۲ ارامیان له وړاندِ او فلسطینیان له وروستو نو اسرائیل به ۱۲
په ټولي خولي سره وخوري سره ددي ټولو غضب نَده ونه ګرزیده بلکه لا
تر اوسَ لاس نَده اوږد دي

۱۳ او امّت خپل وهونکي ته ونه ګرزیده او دَ لښکرو دَ خداوند ۱۳
طلب ئي ونه کړ ۱۴ نو خداوند به له اسرائیل نه سر او لکئِ ګجوره او ۱۴
ډورمه په یوي ورځي پریکړي ۱۵ هغه چه زوړ او معتبر ئي سر دَي او ۱۵

۱۶ هغه نبي چه په دروغ تعلیم ورکوي هغه يُ لکيُ دَي ۱۶ او پیران دَدي
۱۷ امت گمراه کونکي شول او مریدان يُ ونغرېدلي شول ۱۷ دَدي دَپارَ به
مالک به خپلو ځوانانو خوشحال نه شي او دَ هغه په یتیمانو او په کونډو
به رحم و نه کړي ځکه چه هر یو له هغو نه منافق او شریر دي او
ټولي خولي په احمقي سره خبري کونکي دي سره دَدي ټولو غضب دَده
۱۸ و نه گرزیده بلکه لا تر اوسَ پوري لاس دَده اوږد دي ۱۸ ځکه چه
بدکاريُ به وسیزلي شي لکه چه اور اغزي او کروندي خوري او جنگيُ
۱۹ دَ ځنګل به لمبه شي او هغه به دَ لوگي ستنیه پاس ونغاري ۱۹ دَ
لښکرو دَ خداوند په قهر به زمکه وسیزله شي او امت به دَ خس په
۲۰ شان اور لره شي او سړي به په خپل ورور شفقت و نه کړي ۲۰ په ښي
لاس به نغري او وږي به وي او په کینړ لاس به خوري او نه به ډکېږي
۲۱ هر یو به دَ خپل بازو غوښي خوري ۲۱ منسّي دَ افرائیم او افرائیم دَ
منسّي او دوي دواړه به سره په یهودا سره دَدي ټولو غضب دَده
را و نه گرزیده بلکه لا اوسَ پوري لاس دَده اوږد دَي *

## لسم باب

۱ آ هَي هغو لره چه دَ بطلان په حکم سره حکم کوي او هغو لیکونکو
۲ لره چه ظلم روبکار کوي ۲ تا چه ضعیفان له عدالت نه نا امید کړي او
۳ ځما دَ امّت دَ محتاجانو حق رانیسي ۳ چه کونډي يُ لوټ شي او یتیمان
وشوکوي او تاسي به دَ آخرت په ورځ څه کويُ هرکله چه هلاکت له لري
نه راشي دَ مددکاري دَپارَ به چا ته وتښتيُ او خپله دبدبه به چرته
۴ پرېږديُ ۴ یا خو به دَ بندیانو په مینځ کښي ټیټ کښېني یا خو به تر وژلیو
لاندي پرانه وي سره ددي ټولو غضب دده و نه گرزیده بلکه لا تر اوسَ
پوري لاس دده اوږد دي
۵ هَي اشورَ ځما دَ غضب سوټي او هغه همسا چه دَدوي په
۶ لاس کښي ده دغه ځما قهر دَي ۶ په منافق امّت به يُ واستوم او ځما

دَ قهر په قوم به. وله حکم ورکړم چه په لوټ سره ئي لوټ وکړي او په
۷ شوک سره ئي وشوکوِي او دَ کوڅو دَ خټو په شان ئي پائمال کړِي ۷ ليکن
هغه داسي فکر نه کوِي او دَ هغه زړه داسي نه گڼِي بلکه دَ هغه
په زړه کښ دِي چه بيدبائي کړِي او امّتونه چه لږ نه دِي وِ سکنِږي
۸ ۸ ليکن هغه وائِي چه ځما سرداران ټول بادشاهان نه دِي څه ؟ ۹ يا
کلنو دَ کرکميش په شان نه دِي څه؟ او حمات دَ ارفاد په څير نه دي څه؟
۱۰ او سمرون دَ دمشق په طور نه دي څه؟ ۱۰ لکه چه ځما لاس دَ بتـانو
بادشاهتونو بيامندل او دَ هغي تراشلو صورتونو ته ورسيدل چه دغه
۱۱ له هغو نه چه دَ اورشليم او دَ سامرِي وُو لوړ وُو ۱۱ نو لکه چه ما په
سامرِي او دَدي په بتانو وکړل هسي به په اورشليم او دَدي په صورتونو
۱۲ ونه کړم څه؟ ۱۲ نو داسي به وشِي هرکله چه خداوند ټول کار خپل دَ
صيهون په غره او په اورشليم وکړي نو زه به دَ اشور دَ بادشاه دَ زړه
۱۳ دَ کبرجني دَ ميوي او دَده دَ سترګو دَ بلندِي دَ فخر سزا ورکړم ۱۳ ځکه
چه ده وئيلي دِي چه ما دَ خپل لاس په قدرت او په خپل حکمت وکړل
ځکه چه زه پوهان يم او ما دَ خلقو سرحدونه يو وړل او دَدوي ذخيري
۱۴ مِي ولوټلي او دَ بناغلِي په شان مِي بادشاهان پرِيستل ۱۴ ځما لاس دولت
دَ قومونو ته دَ ځالي په شان ورسيده او لکه چه خوري وري هاګئ جمع
کړي شِي هسي مِي ټوله زمکه جمع کړه او هيڅ يو وزر رپونکي او خوله
۱۵ پرانتونکي او چيدونکي نه وه ۱۵ گڼزه تبر به په هغه چه په ده پريکول
کوِي فخر کوِي او يا به اره په خپل ځکونکي کبرجني وکړِي څه لکه چه
سوټي دَ دغه پورته کونکي خوزوِي او لکه چه همسا هغه لره چه لرګي
نه دي پورته کوِي
۱۶ ۱۶ دي دپاره به خاوند رب دَ لښکرو دَ هغه په څاربو. سرو
ډنګرولي واستوِي او دَ هغه تر دبدبي دَ لاندي به لمبه بليږي لکه لمبه
۱۷ دَ اور ۱۷ او نور دَ اسرائيل به اور شِي او قدّوس دَ اسرائيل به لمبه

نو په بوي ورځي. به دَ هغه کرونټيځ او اغزي و سيزي او و به ئي خوري
۱۸ ۱۸ او دَ هغه د ځنګل او دَ برپالي پټي دبدبه به ځان او جسه فنا
۱۹ کړي نو به داسي شي لکه چه بيرغدار پريوزي ۱۹ او باقي وني دَ ځنګل
دَ هغه به دومره لږ وي چه يو هلک به ئي .وليکي
۲۰ ۲۰ او په دغي ورځي کښ به داسي وشي چه باقيه دَ اسرائيل
او بچ شوي دَ کور دَ يعقوب بيا په خپل وهونکي توکّل و نه کړي بلکه په
۲۱ خداوند قدّوس دَ اسرائيل چه برحق دي توکّل به وکړي ۲۱ نو هغه
۲۲ باقيه چه دَ يعقوب بقيه ده قادر الله ته به رجوع وکړي ۲۲ ځکه اي
اسرائيل اګر که ستا قوم دَ درياب دَ شګي په شان وي ليکن له هغه
به يوه باقيه رجوع وکړي تا چه په هغي فنا چه په صداقت سره فائضه
۲۳ ده حکم وکړي شي ۲۳ ځکه چه مالک خداوند دَ لښکرو به په ټولي ځمکي
کښ فنا او قضا وکړي
۲۴ ۲۴ ليکن مالک خداوند دَ لښکرو داسي وائي چه له اشورَ مه
ويريږه اي زما قومَ اسرائيل دَ صيحون استوګيه هغه به دِ په سوټي
۲۵ ووهي او دَ مصر په شان به همسا درباندِ پورته کړي ۲۵ مګر پس له
۲۶ لږ څه نه زما قهر او غضب به دَدوي په هلاکت کښ تمام شي ۲۶ ځکه
چه خداوند دَ لښکرو به په هغه يوه کروړه پورته کړي لکه وهنه دَ
مديان دَ غراب دَ کمر ځنځه او همسا دَده په درياب او دغه به دَ
۲۷ مصر په شان پورته کړي ۲۷ او په هغي ورځي به داسي وشي چه دَ
هغه پيټي به ستا له اوږو نه لري شي او دَ هغه ژغ به ستا له
غاړي نه او هغه ژغ به دَ مسح کولو په سبب کوز کړي شي
۲۸ ۲۸ هغه غياث ته راغي په مجرون کښ تير شه او خپل اسباب
۲۹ ئي په مخماش کښ کيښود ۲۹ له دري نه پوريوتل په جبع کښ شپه
۳۰ وکړه رامه ولړزيدله دَ شاؤل جبعه وتښتيدله ۳۰ اي دَ جليم لوري
په خپل آواز ناري وکړه زما واوره اي ليشه دغه عناثوتَ خواره ده

۳۱ مدمینه وتښتېده اوسیدونکي دَ جبیم پراګنده شول ۳۲ نن ورځ به په ۳۱ ۳۲
نوب کښ پاتي شي هغه به خپل لاس دَ صیحون په غره دَ اورشلیم
په غونډۍ وخوځوي

۳۳ ګوره خداوند رب دَ لښکرو به په دهشت سره ښاخونه قلم ۳۳
کړي او هغه چه لوړ قدّونه دي پرېکړې به شي او هغه چه کبرجن دي
ټیټ کړې به شي ۳۴ او دَ ځنګل وني به په اوسپني پرېکړې او لبنان ۳۴
به په یوه قدرتناک و نړولي شي ❊

# یولسم باب

۱ او دَ یسي له تني به یو تېغ راووزي او دَ هغي له ولیو یو غوړګه ۱
میوه داره شي ۲ او دَ خداوند روح به پرې تم شي روح دَ حکمت او ۲
دَ فهم روح دَ مصلحت او دَ قدرت روح دَ معرفت او دَ خداوند دَ
خوف ۳ او لذّت دده به دَ خداوند په ویره کښ وي او دَ خپلو سترګو ۳
دَ نظر په موافق به حکم ونه کړي او نه به دَ خپلو غوږونو دَ اورېدلو
په موافق فیصله وکړي ۴ بلکه په صداقت سره به مسکینانو ته حکم ۴
وکړي او عاجزانو دَ زمکي ته به په انصاف سره حکم وکړي او زمکه به
په سوټي دَ خپلي خولي ووهي او منافق به دَ خپلو شونډو په دم سره
سر کړي ۵ او صداقت به ئي دَ ملا کمربند وي او امانداري به ئي دَ ۵
ارخونو ملابند وي ۶ نو لیوه به له ګډورو سره اوسي او پړانګ به له سیرلي ۶
سره پنډیږي او سخي او دَ زمري بچي او غوښکي به سره او ووړکي هلک به
ئي بیاپي ۷ او غوا او یږه به سره څري او دَدوي بچي به سره پنډیږي ۷
او زمري به دَ غوایي په شان بروره خوري ۸ او تي خوره به دَ چیچار په ۸
سوړه لوبي کوي او ووړکي به دَ تورو مارانو په ګردغالي لاس اوږدوي
۹ څما په ټول مقدّس غره کښ به چا ته آزار نه رسوي او نه به ئي ۹
هلاک کړي ځکه چه زمکه به له معرفت دَ خداوند داسي ډکه وي لکه
او به دریاب ډکوي

۱۰ ۱۰ او په دغي ورځي به داسي وشي چه هغه مند دبيي چه دَ
قومونو دَپارَ نښان ولاړ وي تومونه به يې ولټوي او دَ هغه دَ استوګني
ځاي به جلال وي
۱۱ ۱۱ او په دغي ورځي به داسي وشي چه خاوند به دوېم وار
خپل لاس را وګرزوي تا چه هغه باقيه امّت دَده چه له اشُورَ او
له مصرَ او له فترُوسَ او له کوشَ او له عيلامَ او له شنواره او له
۱۲ حماتَ او له جزيرو دَ درياب باقي پاتي شوي دي بيرته راولي ۱۲ او دي به
دَ امّتونو دَپارَ نښان ودروي او ورک شوي دَ اسرائيل به راټول کړي
۱۳ او خواره شوي دَ يهوداَ به له څلورو طرفونو دَ زمکي سره جمع کړي ۱۳ نو
دَ افرائيم کينه به ورکه شي او له يهوداَ به کينه‌کښان پرېکړي شي افرائيم
۱۴ به له يهوداَ سره کينه نه کوي او يهوداَ به افرائيم نه تنګوي ۱۴ او
دوي دواړه به له مغربَ دَ فلسطيانو په اوږو والوزي او مشرقيان
به سره لوټ کړي او په ادومَ او په موآب به لاس اوږدوي او بني‌عمون
۱۵ به ني په واک وي ۱۵ او خداوند به ژبه دَ مصرَ دَ درياب ورکه کړي
او په خپل تودي سبلۍ سره به په درياب لاس وخوځوي او تر اوه نالو
پوري به يې ووهي او له وچو پښو سره به تري سړي پوريباسي او دَ هغه
باقي امّت دَپارَ چه له آسور نه بچ شي داسي سړک به وي لکه چه
دَ اسرائيل وه په ورځي دَ ختلو دَده دَ مصر له زمکي نه *

## دولسم باب

۱ ۱ او په دغي ورځي کښ به ته ووايي چه اي خداوندَ زه ستاحمد کوم
ځکه چه اګر که ته په ما غضب‌ناک شوي خپل غضب دِ وګرزاوه او
۲ تسلّي دِ راکړه ۲ ګوره الله مِ خلاصي ده اوزه به باوده شم او نه به
ترسيږم ځکه چه ياه يهوه ځما قوّت او سرود دَي او ځما دَپارَ نجات
۳ شه ۳ نو تاسي به په خوښۍ سره له چينو دَ خلاصي اوبه راوکاږئ
۴ ۴ او په دغي ورځي به تاسي ووائي چه دَ خداوند حمد کوئ دده نوم

وبولئ دده په کارونو دَ قومونو په مینځ کښ تعریف وکړئ ذکر ئې کوئ چه
۵ نوم دده تعالىٰ دي ۵ خداوند ته سرود وغږوئ ځکه چه ده عالیشان
۶ کارونه کړي دي تاچه دغه په ټوله زمکه کښ وپېژاندلي شي ۶ آواز وکړه او
ناري وکړه اي دَ صیحون اوسیدونکي ځکه چه قدّوس دَ اسرائیل ستا په
مینځ کښ عظیم دي ❊

## دیارلسم باب

۱ ۱ وحي دَ بابل دَپاره چه اشعیا زوي دَ آموص ولیده
۲ ۲ تاسي په لغړ غره باندِ بیرغ ودروئ هغو ته آواز پورته کړئ او
۳ په لاس اشارت ورته وکړئ تاچه دَ سردارانو په دروازو ننوزي ۳ ما
خپلو مقدّسانو ته حکم کړي دي او خپل بهادران چه ځما په لوئي فخر کونکي
۴ دي دَ خپل غضب دَپارَ را وبللي دي ۴ دَ ټولیو آواز په غره باندِ دَ ډېرو
قومونو په شان آواز دَ بلوی دَ جمع شویو قومونو دَ بادشاهتونو خداوند
۵ دَ لښکرو دَ جنګ دَ فوځ سان اخلي ۵ هغوي له لري زمکي دَ آسمانونو له
انتها نه راځي خداوند او دَده دَ قهر وسلي تاچه ټوله زمکه خرابه کړي
۶ ۶ هي هي کوئ ځکه چه ورځ دَ خداوند نژدي ده لکه چه خرابونکي
۷ طوفان به له قادر نه راشي ۷ دي دَپارَ ټول لاسونه به سُست شي او ټول
۸ زړه دَ انسان به ویلي شي ۸ نو دوي به ولړزیږي نو دردونه او دَ لنګانه
درد به ونیسي دَ لنګیدونکي ښځي په شان به تاو کیږي یو بل ته به حیران
۹ وي او مخونه به ئې دَ لنبي مخونه وي ۹ کوره هغه ورځ دَ خداوند راځي چه
په قهر او په کړیي دَ غضب سخته ده تاچه زمکه خرابه کړي او خطاکاران
۱۰ به ئې ورنه بیدیا کړي ۱۰ چه دَ آسمانونو ستوري او جبّاران به ئې خپل نور
روښانه نه کړي او نمر به په ختلو کښ تاریک شي او سپوږمۍ به په خپلي
۱۱ رڼا ونه ځلیږي ۱۱ او زه به دنیا ته ددي دَ شرارت او منافقانو ته دَدوي
دَګناه سزا ورکړم او زه به دَ کبرجنو لوئي کول باطله کړم او دَ غښانو
۱۲ قوّت به کوز کړم ۱۲ او سړي به دَ آفیر له زرو نه زیات کمیاب کړم او

۱۳ انسان به دَ اوفیر له سوچو زرو زیات ۱۳ دي دپاره به آسمانونه ولړزوم
او زمکه به له خپل ځاي نه وخوځیږي دَ لښکرو دَ خداوند په قهر کښ
۱۴ او دَده دَ غضب دَ کرمي په ورځ ۱۴ او دوي به دَ ښرلي هوسئ په شان
وي او لکه رمي چه هیڅوک ئي نه ټولوي هر یو به خپل قوم ته متوجه
۱۵ شي هر یو به خپلي زمکي ته وتښتي ۱۵ او هر یو چه وموندلي شي سوري
۱۶ سوري به کړي شي او هر یو چه ونیولي شي په توري به پریوزي ۱۶ او
هلکان ددوي به دَدوي دَ سترګو دَ وړاندِ پریکړي شي او کورونه به ئي
لوټ کړي شي او ښځي به ئي رسوا کړي شي
۱۷ ۱۷ ګوره زه به په هغو باندِ مادیان پورته کړم هغه چه په
۱۸ سپینو زرو پروا نه لري او په سرو نه خوشحالیږي ۱۸ نو لندي به ئي
ځوانان دَ هغو وپرزوي او دَ نس په میوي به ئي رحم ونه کړي او دَ
۱۹ هغو سترګي به په اولاد شفقت ونه کړي ۱۹ نو بابل چه دَ ملکونو دبدبه
او دَ کلدیانو دَ زینت فخر دي داسي به شي لکه سدوم او عموراه چه الله
۲۰ واړول ۲۰ هغه به تر ابدَ پوري آباد کړي نه شي او زمانه په زمانه به
په کښ اوسیدل ونه شي او اعرابیان به هلته کیږدئ ونه درو‌ي
۲۱ او هلته به شپانه خپلي رمي پنډي نه کړي ۲۱ بلکه هلته به دَ بیابان
وحشیان پنډیږي او دَدوي کورونه به له ګونګانو ډک شي او هلته
۲۲ به شتر مرغان اوسي او هلته به وزونه دربي کوي ۲۲ او دَدوي په محلونو
کښ به شغالان او دَدوي په ښځورو هیکلونو کښ به لیوګان انګولا
کړي او دَ هغه وقت نژدي راتلونکي دي او ورځي به ئي اوږدي نه شي

## څوارلسم باب

۱ ۱ ځکه چه خداوند به په یعقوب رحم وکړي او اسرائیل به بیا هم
غوره کړي او دَدوي په خپله زمکه کښ به ئي کښینوي نو به له دوي
۲ سره بیګانه پیوسته شي او دَ یعقوب کورته به ورګډ شي ۲ او امتونه
به ئي ونیسي او خپل ځاي ته به ئي راولي او دَ اسرائیل کور به ئي

دَ خداوند په زمکه کښې مریونه او وینځې کړي او هغوي چه دوي ئي بندیان
کړي دي بندیان به ئي کړي او دوي به په خپلو ظالمانو حکم کوي
۳ ۳ او په هغې ورځې چه خداوند تا ته ستا له محنتَ او له شقتَ
او له سختې بندګۍ چه ته پرې بنده کړي شوي راحت درکړي داسي به
۴ وشي ۴ نو ته به دَ بابل په بادشاه دا مثل وايي او وايي به چه ظالم
۵ څرنګ موقوف شه د سرو زرو آبادي څرنګه موقوفه شوله ۵ خداوند
۶ دَ شریرانو همسا ماته کړه سوټي دَ حاکمانو ۶ هغه چه په سخې بیدریغ
وهنې سره هغه چه په غضب سره په امتونو قهر کونکي وه په هغي
۷ ریرسره چه نه‌ئ ودراوه ۷ په رحمت سره ټوله زمکه ارام کوي سندري الوزوي
۸ تردي چه سروه په تاخوښي کوي اونشتر د لبنان وايي هرکله چه څملاستې
۹ نو په مونږ باندِ هيڅ پریکونکي ونه خوت ۹ دوزخ له لاندي نه چه ته
ورځي استقبال ته دِ خوزیږي هغه ستا دَپارَ ټول رفایم دَ غټانو
دَ زمکي پاڅوي هغه به ټول بادشاهان دَ قومونو دَدوي له کرسیو پاڅوي
۱۰ ۱۰ ټول به ځواب وکړي او تا ته به ووایي چه ته هم څمونږ په څیر ضعیف
۱۱ شوي او څمونږ په شان شوي ۱۱ ستا فخر او ستا دَ باجو نغي دوزخ ته
۱۲ کوز کړي شول تر تا لاندِ وینه بچاونړه شول او پتوني دِ چنجي ۱۲ اي
زهره دَ صباح زویه ته څرنګ له آسمانَ را پریوتلَي اي دَ قومونو پرزونکي
۱۳ ته څرنګ زمکي ته پریکړي شوي ۱۳ او تا خو په خپل زړه کښې ویل چه
زه به آسمان ته وخیژم خپل تخت دَ الله په ستوریو پاس اوچت
۱۴ کړم او دَ شمال په اطرافو کښې به دَ جمعَ کیدلو په غره کښېنم ۱۴ زه
۱۵ به بلندیو دَ اوریځي ته وخیژم ۱۵ زه به دَ الله تعالیٰ په شان شم
۱۶ لیکن ته به په دوزخ کښې دَ کوهي وژوري ته کوز کړي شي ۱۶ هغوي
چه تا ووینې درته به څیر شي او نظر به درته وکړي چه دا هغه
۱۷ سړي دي چه زمکه ئي ولړزوله څه او ملکونه ئي وخوزول ۱۷ هغه
چه عالم ئي دَ بیابان په شان کړ او هغه چه ښهرونه ئي ونړول چه

١٨ قيديان خپلو كورونو ته نه پرېښودل ١٨ ټول واړه بادشاهان دَ قومونو
١٩ ځملاستل هر يو په عزّت سره په خپل كور كښې ١٩ ليكن ته له خپل قبرَ
دَ نفرتي ښاخ په شان وغورزولې شوي لكه جامي دَ وژليو چه په تورې
وهلي وي او دَ كندې كاڼرو ته پريوتونكي دي دَ پايمال شوي جُسې په شان
٢٠ ٢٠ نه به له هغو سره په قبر كښې يوځاي نه شې ځكه چه تا خپله زمكه
خرابه كړي ده خپل قوم دِ وژلي دي دَ بدكارانو اولاد به ترابدَ پورې
٢١ نامدار نه شي ٢١ د هغو دَ زامنو دَپارَ دَدوي دَ پلرونو دَ گناه په سبب
قتل تيار كړئ چه ولاړ نه شي او دَ زمكي وارثان نه شي او دَ عالم
٢٢ مخ له ښهرونو ډك نه كړي ٢٢ نو به زه وربانډ پورته شم دَ لښكرو
خداوند وايي او زه به له بابل نه نوم او باقيه او نسل او اولاد پريكړم
خداوند وايي او زه به ئي دَ زيږكيو ميراث كړم او دَ اوبو ډنډونه او
دَ هلاكت په جارو به ئي جارو كړم خداوند دَ لښكرو وايي
٢٤ ٢٤ خداوند دَ لښكرو قسم وكړ وايي لكه چه ما نيّت وكړ هسي
٢٥ به وشي او لكه چه ما اراده وكړه داسي به پيښ شي ٢٥ چه زه به په خپلي
زمكي اسوري شكست كړم او په خپلو غرونو به ئي پايمال كړم نو دَ ده
٢٦ زغ به له هغو لري شي او دَدوي له اوږو به دده بار لري شي ٢٦ دا
هغه مصلحت دَي چه په ټولې زمكي مصلحت كړي شوي دَي او دا هغه
٢٧ لاس دَي چه په ټولو قومونو اوږد كړي شوي دي ٢٧ نو خداوند دَ لښكر
مصلحت وكړ څوك به ئي باطل كړي او لاس دده اوږد كړي شوي دَي
څوك به ئي را وگرزوي
٢٨ ٢٨ دَ آخاز بادشاه دَ مريدلو په كال دا وحي وه
٢٩ ٢٩ اي ټوله فلسطينَ خوښي مه كوه ځكه چه ستا دَ وهونكي
سوټي مات شه ځكه چه دَ مار له ذات به تور مار راووزي او دَ
٣٠ هغه اولاد به زهردار الوتونكي اژدها وي ٣٠ نو دَ مسكينانو مشيري به
وڅيري او محتاجان به په امان سره پنديږي او زه به ستا بيخ په

۳۱ لوړې مړ کړم او ستا باقيه خلق به قتل شي ۳۱ هي هي کوئ اي دروازو
چيغه وکړه اي ښهرَ اي فلسطينَ ته ټولې ويلي شوي ځکه چه له شمال
به يو لوګي راشي او دَ هغه په لښکرو کښ به هيڅوک ګوښې نه وي
نو هغه به دَ قوم قاصدانو ته څه ځواب ورکړې شي چه خداوند
صيحونَ بنا کړي دي او په هغه کښ به دده محتاج خلق پناه نيسي *

# پنځلسم باب

۱ ۱ وحي دَ مواب په باب
۲ ۲ په يقين سره په يوې شپې کښ عارموآب خراب او هلاک
شه په يوې شپې کښ قير دَ موآب خراب او هلاک شه دَ ديبون او دَ
بَيت ولوړو ځايونو ته دَ ژړا دَپارَ خيژي موآب په نبو او په ميدبا هي هي
۳ کوي دَ هغه په هر يوه سر کښ ګنجالي دي ټولې ږيرې کټ شوي دي ۳ په
خپلو کوڅو کښ ملا په ټاټ تړي دَ هغو په بامونو او په غولو کښ
۴ هي هي کوي په زار زار ژړا ځي ۴ حشبون او العاله چيغې کوي دَ دوارو
آواز ياحص ته آوريدلي شي دَدې دَپارَ وسلي داران دَ موآب چيغې وهي
۵ دَ هغه ځان په کښ لړزيږي ۵ زما زړه دَ موآب دَپارَ چيغې وهي دده
تښتيدونکي صوغر ته دَ دري کالنې سخي په شان ځکه چه دوي دَ لوحيت
په لوړې په ژړا خيژي ځکه چه دوي دَ حوروناييم په لارې کښ دَ ماتيدلو
۶ چيغې وهي ۶ ځکه چه دَ نمريم تالاوونه خراب شول ولي چه واښه وچ
شول او زرغونې تباه شول او زرغونې نه مونده کيږي دَدې دَپارَ چه
هغه دولت چه دوي وګاټه او ذخيرې دَدوي به دَ ولې دَ نالي پورې غاړې
۸ ته يوسي ۸ ځکه چه چيغې دَ موآب په سرحدونو چاپيرې شولي او هي هي
۹ ئي تر اجلاييم پورې او هي هي ئي تر بيرايليم پورې ۹ ځکه چه سنالې دَ
ديمون له وينو ډکې شولي نو زه به نور هم په ديمون راولم
او به خلاصو شويو دَ موآب يو زمرې او په باقيه دَ
زمکې *

# شپاړسم باب

١ ١ تاسو له سلغ نه دَ بيابان په لوري دَ صيحون دَ لور غره ته دَ زمکي دَ
٢ حاکِم ګډوري واستوئِ ٢ او داسي به وشِي لکه ورک شوي مرغه او لکه
٣ پراګنده مرغوټِي دَ موآب لوڼي به دَ ارنون په ګذرونو کښِ شِي ٣ تاسي
مصلحت وکړئِ تاسي انصاف وکړئِ خپل سيوري دَ شپي په شان دَ غرمي
په مينځ کښِ ظاهر کړئِ هغه چه شړلي شوِي دِي پټ ئي کړئِ او تښتيدونکي
٤ مه ظاهروئِ ٤ تا چه له تا سره شړلي شوِي دَ موآب واوسِي ته هغوي
دخرابونکي لَه مخ نه پناګاه شه ځکه چه ظالم نابود کيږِي خرابول بنديږي او پايمالونکي
٥ له زمکي فنا کيږِي ٥ نو يو تخت به په رحمت سره ودراوه شِي او په
هغه به په امانتدارِي سره دَ داؤد په خيمي کښِ يو قضا کونکي کښيني
٦ او حق به لټوِي او په عدالت پسي به زغلِي ٦ مونږ دَ موآب کبرجني
آوريدلي ده چه ډيره کبرجنه ده لوئِيئ لافيئ او غضب ئي فخرونه د نيستي دي
٧ ٧ دي دَپارَ موآب هَي هَي کوِي په موآب بانِد هريو هَي هَي کوِي
دَ قيرحارس دَ کشمشي ونو په چکيو به تاسي فرياد وکړئِ چه دغه وهلي
٨ شوي ده ٨ ځکه چه دَ حشبون پټي وچ شول او دَ سبمه تاکونه
امیرانو دَ قومونو مات کړل او تر يعزيره ورسيدل او په بيابان کښِ
٩ خواره شول ددي ښاخونه خواره شول تر درياب پوري وتل ٩ ددي دَپارَ
به زه دَ يعزير په ژړا سره دَ سبمه په تاکستان ژړا وکړم اي حشبونه
او العالي زه به مو په خپلو اوښکو لانده کړم ځکه چه ستا دَ اوړي
١٠ په ميوي او په لو بانِد دَ جنګ غريږ پريوتلي دي ١٠ او خوښي او خوشحالي
له بريالو پټونه لاړه شوه او په تاکونو کښِ سندري او سرود غږولي
نه شِي او نه مږونکي په چرخشتونو کښِ شراب مږِي ما زوږ کول
١١ موقوف کړل دَ دي دَپارَ ١١ ځما کلمي دَ موآب دَپارَ غږيږِي او ګيډه مِ
١٢ دَ قيرحارس دَپارَ ١٢ هرکله چه موآب ظاهر شِي او چه په لوړه ستومانه

ښي او خپل مقدّس ته دَ نمانځه دَپارَ ننوزِي نو هم به خلاص نه ښي
۱۳ ۱۳ دا هغه کلام دَي چه خداوند له ډيري مُدي نه موآب ته
۱۴ ويلي دي ۱۴ او اوس خداوند خبره کوِي وايي چه په دري کاله کښ لکه
کالونه دَ مزدور به دبدبه دَ موآب له واړه لوي تولِي سره سپکه کړِي
ښِي او هغه باقيه به لږ بيعزّته ښي ❊

# اوه‌لسم باب

۱ آ وحي دَ دمشق په باب گوره دمشق دَ ښهرونو له مينځ نه لري کيږِي او
۲ خرابي ډيرئ به ښي ۲ دَ عروعير کلي پريښي شوِي دِي درمو به ځراګاه
۳ ښي او هغه به پنډيږئ او څوک به نه وِي چه و يُ ويروِي ۳ او له
افرائيم نه به پناګاه لري ښي او له دمشق نه حکومت او له ارام نه باقيه
نو به داسي ښِي لکه دبدبه دَ بنياسرائيل دَ فوځونو خداوند وايِي
۴ ۴ او په دغي ورځي به داسي وښِي چه دبدبه دَ يعقوب به ذليله
۵ ښي او څورب والي دَ غوښي به يُ ډنګرَه ښي ۵ نو داسي به ښِي لکه لوګرِي
چه ولاړ فصل تول کړِي او دَ بازوئ وږِي لو کړِي او داسي به ښِي لکه
۶ چه څوک دَ رفائيم په خوړي کښ وږِي تولوِي ۶ او په کښ لږڅه دروزه
پاتي ښِي لکه په ښنډلو دَ زيتون دوه داني يا دري په سر دَ شاخ کښ
۷ يا څلور يا پنځه په ميوِيدارو څانګو کښ ۷ په دغي ورځي به انسان خپل
صانع ته متوجّه ښِي او سترګي به يُ قدّوس دَ اسرائيل ته نظر وکړِي
۸ ۸ او مذبحونه چه دده دَ لاس کار دَي التفات به و نه کړِي او نه به هغه
ته نظر وکړِي چه دده ګوتو جوړ کړِي دي که سواري وِي که شمشات
۹ ۹ او په دغي ورځي به دَ هغه مضبوط ښهرونه داسي ښِي لکه ويرانه
په ځنګل کښ او هغه لوړ غرونه چه ده دَ بنياسرائيل له مخ نه
۱۰ پريښي وُو خراب به ښي ۱۰ ځکه چه تا دَ خپلي خلاصِي الله هير کړ او
خپل مضبوط کمر دِ په ياد نه کړ دي دَپارَ تاسي به ښائسته بوټِي
۱۱ ولګوئ او عجب نهالونه به ودروئ ۱۱ ستا دَ لګولو په ورځ به وباره

پر وګرزوي او په صباح به فصل ستا غوټۍ ونیسي لیکن دَ هغي هلاکونکي
وهني او دَ هغه مصیبت په ورځ چه بيامیده ده لوګري به وتبنتي
۱۲ ۱۲ هَي هَي په غوربږ دَ ډیرو قومونو چه دَ درباب په شان غوربږ
۱۳ کوي او په غوغا دَ خیلونو لکه چه غوربږ کونکي اوبه غوربږ کوي ۱۳ خیلونه
غوربږ کوي لکه غوربږ دَ ډیرو اوبو لیکن دي به ئي وترټي او هغه به لري
وتبنتي او وبه شړلي شي لکه پروړه دَ غرونو دَ باد له مخه او لکه ګرد
۱۴ دَ ګرد باد دَ وړاندِ ۱۴ په وقت دَ نماښام کښِ ګوره هیبت دَي له صباح
نه به وړاندِ هغوي نه وِي داځمونږ دَ لوټونکو ویش اوځمونږ دَ شوکونکو برخه ده ؛

# اته لسم باب

۱ ۱ اي بربدونکي وزروالي زمکي چه دَ کوش دَ سیندونو پوري غاړه یي ۲ چه په
۲ درباب کښِ او په بېړیو دَ درمو کښِ په مخ دَ اوبو قاصدان آستوي اي
چابکو قاصدانو هغه اوږده او خوار ټولي ته ورشئ هغه قوم ته چه
له ابتدا نه هیبت ناک وه هغه قوم ته چه ویشل او پایمالي کوي چه
۳ زمکه ئي سیندونه ځیري ده ۳ اي ټولو اوسیدونکو دَ دنیا او
باشندګانو دَ زمکي هرکله چه نشان په غرونو پورته کړي شي نو تاسي
ګورئِ او هرکله چه شپیلئِ ووهله شي نو تاسي واورئِ
۴ ۴ ځکه چه خداوند داسي راته وویل چه زه به تم شم او
به خپل مسکن کښِ به نظر کوم لکه دَ وورِي نمر ګرمي لکه شبنم
۵ توبونکي اوریځ دَ لو په ګرمي کښِ ۵ نو وړاندِ له لو نه چه غوټئِ تمامیږي
او چه غوره غوټئِ په پخئن انګور کیږي نو شاخونه به په لرونو پریکړي
۶ او خوریدنکي ځانګي به وکاږي او و به ئي غورځوي ۶ او هغه ټول به
دَ غرونو ځیرونکو او دَ زمکي درندګانو ته پرینبودلي شي او ځیرونکي
به ووړي پري تیروي او ټول درندګان دَ زمکي به ژمي پرِ تیروي
۷ ۷ په دغي ورځي کښِ به خداوند دَ لښکرو ته یوه هدیه پېښه
کړي شي له هغه قومَ چه اوږد او هوار له هغه قوم نه چه له ابتدا

نه هیبت ناکَ وه له هغه قومَ چه ویشل او پايمالي کوِي چه زمکه ئي سيندونه
خيږِي دَ خداوند دَ لښکرو دَ نوم وځاي ته چه دَ صيحون غر دَيَ *

# نولسم باب

۱ آوحي دَ مصر په باب کوره خداوند په تيزي اوريځي سور دَي او مصر
ته راتلونکي دَي نو به دده له حضور نه بتان دَ مصر به ولړزيږِي او دَ
۲ مصر زړه به په کښ دننه ويلي شِي ۲ او مصريان به په مصريانو پاڅوم
نو هر يو به له ورور خپل سره جنګيږِي او هر يو به له خپل ملګرِي
۳ سره ښهر له ښهر سره بادشاهت له بادشاهت سره ۳ او دَ مصر روح
به په ده کښ دننه توِيي شِي او دَ ده مصلحت به تباه شِي نو دوي به
۴ بتانو ته او دَ دمکريو او پريدارانو او جادوګرانو ته سوال وکړِي ۴ نو زه به
مصريان دَ يوه سرکښ مالک په لاس کښ بنديان کړم نو به يو غالب بادشاه
په دوي کښ حکومت کوِي خاوند رب دَ لښکرو وايي
۵ ۵ او اوبه له درياب نه جذب کړي شِي او ناله به وچي او خشکي
۶ شِي ۶ او دريابونه به بدبويه شِي او ويالي دَ مصر به کمي او وچي شِي او
۷ دُرمي او لوخي به تلف شِي ۷ او چمنونه به په نيل باندِ او په غاړي دَ
۸ نيل او ټوله کرونده په نيل به وچ او نابود شِي او نه به وِي ۸ نو ماهيګيران
به هاي هو کوِي او هغه ټول چه په نيل کښ کُنډه اچوِي وير به کوِي
۹ او هغه چه دَ اوبو په مخ باندِ جال غوړوِي غم به کوِي ۹ او هغه چه
۱۰ دَ ويښتږلي السي کار کوِي او اودونکي دَ سپينو سټرو به پښيماني کوِي ۱۰ او
ارکان دولت ميده ميده شِي او ټول چه په مزدوري کار کوِي زړه بدِي
به وِي
۱۱ ۱۱ په يقين سره دَ ضوعن سرداران احمقان دِي دَ فرعون دَ دانايانو
مصلحت کونکو مصلحت ښناوري دَي تاسي فرعون ته څرنګ وايئِ چه مونږ
۱۲ دَ دانايانو زامن يو دَ وړاندنيو بادشاهانو زامن ۱۲ نو ستا دانايان چري
دِي تا دِ خبر کړي که دوي پوهيږِي چه خداوند دَ لښکرو په مصر څه

١٣ حکم کړي دي ١٣ دَ ضوعن سرداران احمقان شول سرداران دَ نوف وتکلي
١٤ شول رئيسانو دَ فرقو ئي مصر گمراه کړ ١٤ خداوند بو باغي روح دَده په
مينځ کښ گډ کړي دي او دوي په هرکار کښ مصر گمراه کړ لکه
١٥ زنگيدل دَ مست په خپل قي کښ ١٥ نو مصر لره به هيڅ کار نه وي
چه سريا لکئ کجوره يا درمي وئي کړ
١٦ ١٦ نو په دغي ورځي کښ مصر دَ ښځي په شان شي نو به دا دَ
خداوند له لاس خوځولو نه چه ورباندِ ئي وخوځوي ريږيږي او لړزيږي
١٧ ١٧ نو به دَ يهوديي زمکه دَ مصر دَپارَ دهشت وي هريوچه دَ
هغه ذکر وکړي دَ خداوند دَ لښکرو قضا له وراندِ به و ترسيږي هغه
چه قضا ئي پرِ کړي دَه
١٨ ١٨ په دغي ورځي کښ به دَ مصر په زمکي کښ پنځه ښهرونه
وي چه په کنعاني ژبه به خبري کوي او په خداوند دَ لښکرو به قسم
١٩ کوي له هغو نه به يوه ته دَ نمر کلي وايي ١٩ په دغي ورځي به مذبح
دَ خداوند دَ لښکرو دَ مصر دَ زمکي په مينځ کښ وي او دَ خداوند
٢٠ ستنه به دَ هغه دَ سرحد څنګه وي ٢٠ نو به خداوند دَ لښکرو
ته يوه نښه او شاهدي دَ مصر په زمکه کښ وي ځکه چه دوي
به دَ تنګونکو په سبب خداوند ته ناري کوي نو دي به هغو ته يو
٢١ خلاصونکي او مدکار واستوي او رها به ئي کړي ٢١ نو به خداوند په
مصر کښ وپيژاندلي شي او په دغي ورځي به مصريان خداوند وپيژني
او ذبيحه او هديه به وراندِ کوي او خداوند ته به نذر ومني او ادا
٢٢ به ئي کړي ٢٢ او خداوند به مصر ووهي هو وهونکي او شفا ورکونکي
نو دوي به خداوند ته رجوع وکړي او دي به ځواب ورکړي او شفا
٢٣ به ورکړي ٢٣ په دغي ورځي کښ به له مصر تر اشور پوري يو سړک
وي نو اشوري به مصر ته ورځي او مصريان به اشور ته او مصريان
به له اشوريانو سره عبادت کوي

٢٤ ٢٤ په دغي ورځي کښ به اسرائيل له مصر سره يو ثلث شي
٢٥ او اشور له به يو برکت په زمکه کښ ٢٥ دغه به خداوند دَ لښکرو مبارک
کړي و به وايي چه مصر ځما امت دِ مبارک وي او اشور ځما دَ لاسونو
کار او اسرائيل ځما ميراث ؛

## شلم باب

١ ١ دَ ترتان دَ ورتلو په کال کښ و اشدود ته هرکله چه هغه سرجون
بادشاه دَ آشور واستاوه او په اشدود وجنګيده او وا ئي خست
٢ ٢ په دغه وقت کښ خداوند دَ اشعياه زوي دَ اموص په معرفت
خبره وکړه و ئي ويل چه لاړ شه او شړي له ملا نه پرانزه او څپلۍ
له خپلو پښو وکاږه نو ده هم هسي وکړل او برمنډ او يبله پښي
٣ ګرزيده ٣ نو خداوند وويل لکه چه ځما بنده اشعيا برمنډ او يبله
پښي دري کاله وګرزيده تاچه په مصر او په کوش نخښه او عجيبه
٤ وي ٤ هم هسي به دَ آشور بادشاه بنديان دَ مصر بوډي او کوشيان
به جلاوطنه کړي او دَده ځوانان او زاړه به برمنډ او يبله پښي او لوڅ
٥ کوناتي شي دپارَ دَ رسوايي دَ مصر ٥ نو دوي به هراسان او شرمنده
شي دَ کوش دپارَ چه دَدوي اميدګاه دي او دَ مصر دپارَ چه دَدوي
٦ فخر دي ٦ او اوسيدنکي دَدغي کناري به وواېي ګوره داسي شوه هغه
اميد ځموږ چه دَ مددګاري دپارَ ورتښتيدلو تاچه موږ دَ آشور
له بادشاه نه خلاص شو نو موږ به څرنګ سلامت پاتي شو ؛

## يو ويشتم باب

١ ١ دَ درياب دَ بيابان په باب وحي لکه چه بربوکئي په جنوب کښ له
٢ هيبتناکي زمکي الوتونکي راځي ٢ ما ته يوه هولناکه مکاشفه ښکاره
شوه ټګونکي ټګي کوي او لوټونکي لوټ کوي وخيژه اي عيلامه محاصره وکړه
اي ماديانه زه به ټول زګيروي دَ هغي باطل کړم ٣ دَ دي دپارَ م ملا
له درد نه ډکه شوه او دَ زيږونکي دَ درد په شان درد ونيو دومره

خوږیږم چه آوریدلي نه شم پریشانه شوم دومره چه لیدلي نه شم -
۴ ۴ زړه مې ودرزیده او ناڅاپه هول مې ترسوي ده څما دَ نمابنام لذّت
۵ راته لړزه کړه ۵ هغوي دسترخوان غوړوي او څوکئ ودروي هغوي خوري
او څښي اي سردارانو پورته شئ ډالونه ومږئ
۶ ۶ څکه چه خاوند ما ته داسي وویل چه لاړ شه څوکیدار ودروه
۷ تاچه په هرڅه چه دي ئې ووینې خبر دِ کړي ۷ او هرکله چه جوړه جوړه
سواره دَ اسونو سواره دَ خرونو سواره دَ اوښانو ووینې نو هغه
۸ دِ په سخت څیر سره څیر کړي ۸ بیا ئې دَ زمري په شان چغي کړي چه
اي خاونده زه همیشه په ورځ کښ په نظرګاه باندِ قایم ولاړ یم او زه په
۹ څوکئ باندِ ټولي شپي ولاړ یم ۹ او ګوره سواره دَ سړو جوړه جوړه
دَ سورو نو ده څواب ورکړ و ئې ویل چه بابل پریوت پریوت او ټول
۱۰ تراشلي صورتونه دَ خدایانو ئې زمکي ته ریزمریز شول ۱۰ اي څما ټکولي
شوو او څما دَ دردمند زامنو هغه چه ما له خداوند دَ لښکرو الله
دَ اسرائیلَ واوریدل تاسي مې پرِ خبري کړي ئې
۱۱ ۱۱ دَ دومه په باب وحي ما ته یوه چغي وهونکي له سعیر نه را
ناره کړه چه اي څوکیداره دَ شپي څه حال وَه اي څوکیداره دَ شپي
۱۲ څه حال وَه ۱۲ څوکیدار وویل چه صباح راځي او شپه هم که تاسي
طلب کوئِ نو طلب وکړئِ راوګرزئِ راشئ
۱۳ دَ عربو دَ ښهرونو په باب وحي ۱۳ په بیابان کښ دَ عربو په
۱۴ ښهرونو کښ په تاسي شپه تیره کړئِ دَ دیدنیانو قافلو ۱۴ دَ تېږو
دَیارَ ئې وبه راوړي دَ تیما دَ زمکي اوسیدونکي له خپلي ډوډئِ سره
۱۵ لښتیدونکو ته پیښ شول ۱۵ څکه چه دوي دَ تورو له مخي وتښتیدل
دَ کښلي توري له مخي نه او دَ ځکولي لِندي له مخي نه او دَ جنګ
۱۶ دَ سختي نه ۱۶ څکه چه خاوند ما ته داسي وویل په مُدې دَ یوه
کال کښ لکه کال دَ مزدور ټوله دبدبه دَ قیدار به نیست شي ۱۷ او

باقِي شُمار دَ مرِنيو ويشتونكو دَ بنِي قيدار به كم شِي ځكه چه خداوند الله دَ اسرائيل وفرمائيل

# دوه ويشتم باب

۱ دَ رويا دَ خوړي په باب وحي ¹ تا لره څه دِي چه تاسي ټول په بامونو
۲ و ختلئ ² اي له غوړيږ ډكه چه كوكي وهونكي ښهر وِي او فخر كونكي كلي
۳ ستا وژلِي دَ توري وژلي نه دِي او نه دَ جنګ مړي ³ ستا ټول سرداران
سره وتښتيدل له لِندي ويشتونكو بنديان شول ټول چه په تا كښ
۴ موجود دِي سره بنديان شول له لري وتښتيدل ⁴ ځكه دي دَپارَ مِ
وويل له ما نه په ډېره شيځِ چه زه به په تلخِي وژاړم تاسي څما دَ
امت دَ لور په لوټيدلو په تسلِي راكولو كوشش مه كوئِ

۵ ⁵ ځكه چه خاوند رب دَ لښكرو لره دَ رويا په خوړي كښ دَ
غوغا او دَ پايمالي او دَ حيراني ورځ ده دَ ديوال نړول او چغي كول
۶ غره ته ⁶ نو عيلام تركښ واخست دَ سړو دَ سورو دَ ګاډيو سره
۷ او قير ډال برښنده كړ ⁷ نو داسي به وشول چه ستا ښترِي خوړي
له ګاډيو ډكي او سوارو دَ دروازي په لوري په صف تړلو سره صف
۸ ونارو ⁸ او دَ يهودا پرده به ئي واخستله نو تا په هغي ورځي دَ بن
۹ دَ كور وسلي ته وكتل ⁹ او تاسي دَ داؤد دَ ښهر سوري وليدل چه
دغه ډير شوي دِي او تاسي دَ لاندِني تالاؤ اوبه جمع كړي دِي -
۱۰ ¹⁰ او دَ اورشليم كورونه مو شميرلِي دِي او كورونه مو دَ ديوال دَ
۱۱ مضبوطي دَپارَ نړولي دِي ¹¹ او تاسي دَ دوارو ديوالونو په مينځ كښ دَ
زاړه تالاؤ دَ اوبو دَپارَ يو خندق جوړ كړي دي ليكن دَ هغه كاريګر
ته مو ونه كتل او دَ هغه قديمِي صورت جوړونكي ته مو ونه كتل
۱۲ ¹² او په دغي ورځي كښ به خاوند رب دَ لښكرو وژړا ته او وير ته
۱۳ او سر خريلو او ملا تړلو په شړيِ ته ور وبولِي ¹³ نو ګوره خوښي
او خوشحالِي ده ذبحه دَ غوايه او حلالول دَ ګډي دَ غوښي خوړل دَ
شرابو څښل دِي موښ دِ وخورو او وڅښو ځكه چه موښ به صبا

۱۴ مړه شو ۱۴ نو خداوند دَ لښکرو ځما په غوږونو ښکاره کړل چه زه
به دا ګناه در و نه بخښم ترڅو چه مړه شئ خاوند رب دَ لښکرو وائي
۱۵ ۱۵ خاوند رب دَ لښکرو داسي وويل چه لاړ شه او دغه خزانچي
۱۶ دَ بادشاه ته ور ننوزه شبنا ته چه دَ کور ناظم دَي ۱۶ چه ستا دلته څه
او ستا دلته څوک شته چه تا دَ ځان دَپارَ قبر کنودلي دَي اي په لوړه
۱۷ کښي قبر کندوکي او چه په فرشه کښي دَ ځان دَپارَ مسکن کړني ۱۷ ګوره
اي سړيه خداوند به دِ په غورزولو و غورزوي او په ټينګولو به دِ ټينګ
۱۸ کړي ۱۸ هغه به دِ دَ پندوسي په شان په نغښتلو سره هغي زمکي ته
و نغاړي چه دواړه طرفونه ئې فراخ وِي هلته به مړ شي او هلته به
۱۹ ستا دَ دبدبي ګاډيِ وِي اي دَ خپل خاوند دَ کور شرمه ۱۹ او زه به
دِ له خپل منصب نه وشړم او له خپل مقام نه به دِ راګوز کړم
۲۰ ۲۰ او په دغي ورځي کښي به داسي وشي چه زه به خپل بنده
۲۱ الياقيم زوي دَ حلقيا راوبولم ۲۱ او ستا جامه به ور واغوندم او ستا
کمربند به په هغه وتړم او ستا سلطاني به دَ هغه په لاس کښي کړم
۲۲ نو هغه به دَ اورشليم د اوسيدونکو او دَ يهوداَ دَ کور پلار وِي ۲۲ او
دَ داؤد دَ کور کونجي به دَ هغه په اوږو کړم نو دي به ئې پرانزي او
هيڅوک به نه وِي چه پوري ئې کړي او پوري به ئې کړي او څوک به نه وِي
۲۳ چه وازي ئې کړي ۲۳ او زه به ئې دَ مږوي په شان په محکم ځاي ټکووهم
۲۴ او دَ خپل پلار دَ کور دَپارَ به دَ جلال کرسي وِي ۲۴ او په ده به دَ
پلار دَ کور ټول جلال ځوړند کړي دَ کي او ښاخونه او ټول وړوکي لوښي
۲۵ دَ تالکيو له لوښو تر ټولو لوښو دَ کنډولونو پوري ۲۵ په دغي ورځي کښي
به خداوند دَ لښکرو وائي چه هغه مږوي چه په محکم ځاي
کښي ټک وهلي وه لري کړي به شي پريکړي او پريوتلي به شي او
هغه پېټي چه وړباندي وُه نيست به شي ځکه چه خداوند
فرمايلي دي *

# درویشتم باب

آ دَ صور په باب وحي هَي هَي کوئِ اي دَ ترسیس جهازونو څکه ۱
چه هغه خراب شه تر دي چه نه کور شته نه ئي ننوتنه دَ کتیم له
زمکي هغوي ته ښکاره شوي دي ۲ اي دَ جزیري اوسیدونکو تم شئِ ۲
دَ صیدون سوداگرانو چه له دریاب پوري وتونکي دِي ډکه کړي ئي يئِ ۳ او ۳
دَدي حاصل فصل دَ شیحور لو دنیل په گڼو اوبو وُه او هغه دَ قومونو
دَ سوداگرئِ ځاي شه ۴ اي صیدونه وشرمیږه چه قعر دریاب قلعه ۴
دَ قعر دریاب خبره کړي ویلي ئي دِي چه زه دردمنده شوي نه يم او
نه مِ هلک زیږولي دَي او نه مِ ځوانان پالِلي دِي او نه مِ پیغلي نمانځلي
دِي ۵ لکه په وقت دَ خبر رسیدلو مصر هم هسي به دردناک شي ۵
په وقت دَ خبر رسیدلو دَ طور ۶ تاسي له ترسیس پوري وزئِ اي ۶
اوسیدونکو دَ جزیري هَي هَي کوئِ ۷ چه دغه ستاسي هغه دَ فخر ځاي ۷
دَي څه؟ چه بنیاد ئي له وړاندِینو ورځو نه دَي دَ هغي پښي ئي دَ
مسافرِي دَپارَ لري بیایي
۸ چا په دي حکم کړي دَي په هغه طور باندِ چه تاجدار او ۸
سوداگران ئي رئیسان دِي او کماشتگان ئي عزّتمند دَ زمکي دِي ۹ خداوند ۹
دَ لښکرو دا حکم کړي دَي تا چه ټول لويي دَ دبدبي نجسه کړي او ټول
عزّتمند دَ زمکي سپک کړِي ۱۰ اي دَ ترسیس لوري ته له خپلي زمکي ۱۰
دَ نیل په شان تیره شه ځکه چه بیا بند نشته ۱۱ ده خپل لاس ۱۱
په دریاب اوږد کړ ده ملکونه وخوځول خداوند دَ کنعان په حق کښ
و فرمایل چه دَده کوټونه ونړولي شي ۱۲ او وئي ویل چه اي دَ صیدا ۱۲
مظلومي شوي پیغلي ته به بیا فخر و نه کړي کتیم ته پوري شه هلته کښ به
تا لره آرام نه وِي ۱۳ گوره دَ کلدانیانو زمکه دا قوم نشته دَ هغو ۱۳
بنیاد آشور دَ بیابانیانو دَپارَ ینبي دي. دوي خپل برجونه ودرول او دَ

۱۴ هغو محلّونه ئي ونړول هغه ئي ډيري کړل ۱۴ اي دَ ترسيس جهازونو
هَي هَي کوئِ ځکه چه کوټ خراب شه
۱۵ ۱۵ او په دغي ورځي په داسي وشِي چه صوز به اويا کاله هير
کړي شِي لکه دَ يوه بادشاه ورځي او پس له اويا کالونو به صور داسي
۱۶ شِي لکه په سندري دَ کنچنئِ کښ ۱۶ خپل ستار واخله په ښهر کښ
وګرزه اي هيري کړي شوي کنچنئِ او په ښه شان ئي ووهه او ډيري
۱۷ سندري ووايه تا چه ته به يادشي ۱۷ او پس له اوياؤ کالونو به داسي
وشِي چه خداوند به دَ صور خبر واخلِي او اجرت خپل ته به بيا
وګرزي او په مخ دَ زمکي به له ټولو بادشاهتونو دَ ښهرونو سره
۱۸ زنا وکړِي ۱۸ او دَدي سوداګري او اجرت به خداوند ته مقدّس وِي نه
به ذخيره کړي شِي او نه به خزانه کړي شِي بلکه دَدي سوداګري به
دَ هغو دَپارَ وِي چه دَ خداوند دَ وړاندِ مقيم دِي دَپارَ دَ خوراک تر
ډکيدلو پوري او دَ پايدار پوشاک دَپارَ *

## څلورويشتم باب

۱ ۱ ګوره خداوند به زمکه خالِي او تشه کړِي او پړمخ به ئي کړِي او
۲ اوسيدونکِي به ئي نابود کړِي ۲ او لکه چه قوم وِي هسي به کاهن
وِي لکه چه مريي هسي به ئي خاوند وِي لکه وينزه هسي به ئي
ميرمن لکه اخستونکي هسي خرڅونکي لکه پور اخستونکي هسي پور
۳ ورکونکي او لکه سود اخستونکِي هسي دَ سود ورکوونکِي ۳ په تشوالي
به زمکه تشه شِي او په لوټيدلو به لوټ شِي ځکه چه خداوند په دي
۴ قول سره ويلي دِي ۴ زمکه وِير کوِي او مراوي کيږِي دنيا غمجنه او
مراوي شوه لوړ قومونه دَ زمکي غم کوِي
۵ ۵ او زمکه ترخپلو ساکنانو لاندِ پليته کيږِي ځکه چه دوي
له شريعتونو ډډه وکړه او فرضونه ئي بدل کړل او ابدِي وعده ئي
۶ ماته کړه ۶ دي دَپارَ لعنت زمکه وخوړله او اوسيدونکِي په دي کښ

قصوروار شول دي دَپارَ اوسيدونکي دَ زمکي وسوزيدل او لږ څه
۷ سړي پاتي شول ۷ شيره وير کوي انګور مړاوي کيږي ټول خوشدله
۸ زګيروي کوي ۸ خوشحالي دَ تنبلونو پريکړه شوه دَ خوښي کونکو غوغا ورکه
۹ شوه خوشحالي دَ سناري بنده شوه ۹ دوي به بيا په سندرو سره
سره شراب و نه څښي نښه به دَدي څښونکو لره تارخه معلوميږي
۱۰ ۱۱ ۱۰ دَ ويراني ښهر ونړيدلي شه هر کور له ننوتلو بند کړي شه ۱۱ په کوڅو
کښ دَ شرابو چيغي دي ټوله خوشحالي ډوبه شوه خوښي دَ زمکي ورکه
۱۲ شوه ۱۲ هغه چه په زمکه کښ باقي دي خراب دي او دروازه دړي وړي
۱۳ شوه ۱۳ نو دغه به د زمکه په مينځ په خلقو کښ به داسي شي لکه څنډلي شوي
دَ زيتون اولکه ټوټند زنګوري چه پريکول تمام شي
۱۴ ۱۴ دوي به خپل آوازونه پورته کړي او سندري به ووايي دَ
۱۵ خداوند دَ کبريائي په سبب له درياب نه آواز وکړي ۱۵ دي دَپارَ په
مشرقونو کښ دَ خداوند تمجيد وکړئ هو دَ درياب په جزيرو کښ دَ
اسرائيل دَ خداوند الله دَ نوم
۱۶ ۱۶ دَ زمکي له اطرافو مونږ سندره دَ تمجيد دَ صادق واوريدله
نو ما وويل چه اي څما هلاکتَ اي څما هلاکتَ هَي ما لره. لوټ کونکو
۱۷ لوټ وکړ لوټ کونکو به لوټ سره لوټ وکړ ۱۷ په تا باندِ دهشت او ډوغل
۱۸ او دام دي اي دَ زمکي اوسيدونکي ۱۸ او داسي به وشي هغه چه دَ
دهشت له آواز نه تښتيدونکي وي په ډوغل کښ به پريوزي او هغه
چه دَ ژوري له مينځ راپورته کيدونکي دي په دام سره به ونيولي شي
څکه چه دريڅي له پاسَ واري دي او بنيادونه دَ زمکي وخوځيدل
۱۹ ۱۹ زمکه په ميده کولو سره ميده شوه زمکه په چاودلو سره وچاوده
۲۰ زمکه په خوځيدلو سره وخوځيده ۲۰ زمکه دَ کيفي په شان په تنبيدلو
سره تنبيږي او دَ څالي په شان خوځيږي او په دي باندِ ګناه دَدي
درنه شوه دا پريوته او بيا به پورته نه شي

۲۱ ۲۱ او په دغي ورځي به داسي وشي چه خداوند به دَ بلندي
فوځ په بلندي کښ طلب کړي او بادشاهان دَ زمکي په زمکه باندي
۲۲ ۲۲ او په ټوليدلو سره به ټول شي لکه بنديان په زندان کښ او
په بنديخاني کښ بند شي بيا به ئي پس له ډيرو ورځو خبرو اخستلي
۲۳ شي ۲۳ او سپوږمۍ به خجله او نمر به شرمنده شي ځکه چه خداوند
دَ لښکرو به دَ صيحون په غره کښ او په اورشليم کښ او دَ ده دَ
سپين ږيرو دَ وړاندِ په جلال سره بادشاهي وکړي *

## پنځه ويشتم باب

۱ ۱ اي خداوندَ ته خما الله يي زه به ستا تعظيم وکړم ستا دَ نامه
مدحه وکړم ځکه چه تا عجب کار کړي دَي ستا مصلحتونه له قديم
۲ نه امانداري او صدق دي ۲ ځکه چه تا ښهر ډيرَي وګرزاوه او
محکم کوټ دِ کنډر او دَ بيګانهٔ ماڼيِ تا چه ښهر نه وِي تر ابدَ
۳ به ودان نه شي ۳ دي دَپارَ به قوّت‌ناک خلق ستا اکرام وکړي او دَ
۴ سرکښو قومونو کلي به له تا نه ويره وکړي ۴ ځکه چه دَمسکينانو قلايي
دَ محتاجانو قلا دَدوي په تنګسيا کښ او له سيل نه پناګاه سوري
۵ له ګرمي نه هرکله چه دَ سرکښو پوکي لکه سيل په ديوال وِي ۵ ته به
دَ بيګانهٔ غوغا داسي کوزه کړي لکه ګرمي په خشکي کښ دَ اوريځي لکه
ګرمي په سوري ته به سندري دَ سرکښانو ذليلي کړي
۶ ۶ او خداوند دَ لښکرو به په دي غره کښ دَ ټولو قومونو دَپارَ
دَ ښارېو ځيزو ميلمستيا وکړي ميلمستيا دَ زړو شرابو دَ ښاربو
۷ مغزو والو ځيزونو دَ زړو صافو کړو شرابو ۷ او په دي غره کښ به
مخ دَ پردي نيست کړي هغه پرده چه په ټولو قومونو ده او هغه
۸ پټولي چه په ټولو امتونو غوړيدلي دَي ۸ هغه تر ابدَ پوري مرګ
نغرلي دي او خاوند پروردګار به له ټولو مخونو اوښکي پاکي کړي
او دَ خپل امّت رسوائي به له ټولي زمکي لرې کړي ځکه چه خداوند

فرمايلي دي
۹ ۹ او په دغي ورځي به وويل شي گوره دا څمونږ الله دی چه
مونږ ئي انتظار کاوه او خلاص به مو کړي دا هغه خداوند دي چه مونږ
۱۰ ئي انتظار کاوه مونږ به دده په نجات خوش او خورم شو ۱۰ ځکه
چه لاس دَ خداوند به په دي غره باندِ قرار شي او موآب به په
خپل ځاي پايمال شي لکه چه پروړه دَ غوجلي په اوبو کښ پايماله
۱۱ کيږي ۱۱ نو به دي په هغو کښ لاس وغوړوي لکه چه لانبوزن ئي
د لانبو دَپارَ غوړوي نو دي به دَ هغه کبرجني دَ ده دَ لاسونو له
۱۲ مکرونو سره کوزه کړي ۱۲ او دي به ستا دَ ديوالونو اوچت برجونو
و نړوی او کوز به ئي کړي او له زمکي سره بلکه له خاورو سره به پيوست کړي

# شپږويشتم باب

۱ ۱ په دغي ورځي کښ به دَ يهوداَ په زمکه کښ په دي سرود سره
سرود واهه شي څمونږ يو قوّت ناک ښهر دَي دده ديوالونه او ښهرپناه
۲ به خلاصون وگرزوي ۲ دروازي وازي کړئِ تا چه عادل او امانتدارِي
۳ ساتونکي امّت درننوزي ۳ هغه چه زړه ئي ټينګ برقرار دي ته به ئي
په سلامتِي سره سلامت وساتي ځکه چه په تا توکّل کونکي دَي-
۴ ۴ تر ابدَ پوري په خداوند توکّل کوئِ ځکه چه ياه يهوه دَ زمانو
۵ پڼبه ده ۵ ځکه چه دي اوسيدونکي دَ بلندِي کوزوي او لوړ کلي
۶ ټيټ کوي دي ئي زمکي ته ټيټ کوي خاورو ته ئي ټيټ کوي ۶ پښي
به ئي پايمال کړي پښي دَ محتاج او قدمونه دَ مسکينانو
۷ ۷ دَ صادق لار راستِي دَه اي راستبازه ته دَ صادق لار هواره
۸ کوي ۸ ستا دَ حکمونو په لار کښ اي خداونده تا ته انتظار کوو
۹ ستا نوم ته او ستا ذکر ته څمونږ دَ ځان شوق دَي ۹ ما په خپل
ځان په شپه کښ ستا شوق ولاره ما هم په خپل روح سره دننه
سحر وقتِي ستا طلب وکړ ځکه هرکله چه ستا عدالتونه په زمکه

١٠ كښې وشي نو ساكنان دَدنيا به صداقت زده كړي ١٠ په منافق به رحم
وكړې شي او صداقت به زده نه كړي دَ راستي په زمكي به شرارت
وكړي او دَ خداوند تمجيد به نه وينې
١١ ١١ اي خداوندَ ستا لاس هسك دئ او دوي ئې نه وينې وبه
ئې وينې او له هغه غيرت نه چه په امت بې لاري شرمنده به شي
١٢ او اور به ستا دښمنان وخوري ١٢ اي خداوندَ ته به ځمونږ دَپارَ
سلامتي مقرّره كړې ځكه چه تا ټول كارونه ځمونږ مونږ ته وكړل-
١٣ ١٣ اي خداوندَ ځمونږ الله په مونږ باندې بي له تا نه نورو خاوندانو
١٤ واكداري وكړه مگر مونږ به يواځي ستا نوم ذكر كوو ١٤ هغوي
مړه دي بيا به ژوندي نه شي فوت شوي دي پورته به نه شي
دي دَپارَ تا سزا وركړه او هلاك دې كړل او ټول ياد دَدوي دې نابود كړه
١٥ ١٥ اي خداوندَ تا قوم زيات كړه تا قوم زيات كړه ستا تمجيد
١٦ وشه او تا ټول طرفونه دَ زمكي ارت كړل ١٦ اي خداوندَ دوي په
تنگسيا كښې ولټولې او هركله چه ستا تنبيه وربانده وه نو ويره
١٧ وربانده نوي شوه ١٧ لكه حامله چه دَ زيږولو وقت ئې نژدې شي او
دردناكه شي او په خپل درد كښې چغي وهي نو مونږ ستا دَ وړاندې اي
١٨ خداوندَ داسي شولو ١٨ مونږ حامل شولو دردناك شولو گويا كښې باد
مو وزيږاوه مونږ په زمكه خلاصون حاصل نه كړ او اوسيدونكي دَ دنيا
١٩ پريوتلي نه دي ١٩ ستا مړي به ژوندي شي جسې به پورته شي ويښې
شئ سندري وايئ اي دَ خاورو اوسيدونكو ځكه چه ستا شبنم دَ
زرغونكو شبنم دي او زمكه به فوت شوي بهر وغورزوي
٢٠ ٢٠ اي ځما امتَ راشه او خپلو خونو ته ننوزئ او دروازي
دربسې بندي كړئ او لږ څه ساعت پټ شئ ځو چه غضب لرې شي
٢١ ٢١ ځكه گوره چه خداوند له خپل مكانه راووزي تاچه اوسيدونكو
دَ زمكي ته دَ گناه سزا وركړي نو به زمكه خپلي وينې ښكندي او بيا

به خپل وژلي شوي پټ نه کړي ✣

# اووه ویشتم باب

آ په دغي ورځي کښ به خداوند په خپلي سختي او لویي او مضبوطي ۱
توري سره اژدها ته چه تښتیدونکي مار دي سزا ورکړي اژدها مار
ته چه پیچلي دي او هغه اژدر چه په درياب کښ دي و به ئي وژني
۲ په دغي ورځ کښ دَ لذتناکو انګورو دَپاره ئي غزل ووايئ ۲
۳ زه خداوند يم دَ هغه نګهبان تاچه وربانډ را نه شي آزار ۳
زه به ئي اوبه کوم په هر آن شپه اوورځ به پري خبردار ۴ زه نه لرمَ قار ۴
کاشکي چه اغزي او کروندي وَي څما دَوړانډ او به جنګ کښ م حمله وکړي پري بانډ
او يو ځاي م سره وسيزلي (په نار)
۵ يا خو دِ منګلي ووهي څما په دامن او راسره دِ صلحه وکړي صلحه دِ ۵
راسره وکړي ۶ په آينده کښ به يعقوب بيخ ونيسي او اسرائيل به ۶
تازه شي او غنچي به وکړي او دَ دنيا مخ به په ميوي ډک کړي ۷ کنزه ۷
ده هغه وواهه لکه وهل دَ وهونکي دَده يا هغه ووژلي شه لکه
وژلل دَ قاتلانو دَده؟ ۸ هرکله چه تا په زجر سره طلاقه کړه دعوي دِ ۸
ورسره وکړه هغه دَ مشرقي باد په ورځ په خپل تُند باد سره لري
کړه ۹ دَدي دَپارَ به په دي سره دَ يعقوب دَ ګناه کفاره شي او دا ۹
چه ټوله ميوه دَ وکښلو دَ خطاؤ به حاصله کړي که چري ټول کاڼي
دَ مذبح لکه تکړي تکړي شوي کاڼي دَ چوني وګرزوي بيا به سواري
او شمسات و نه دروي ۱۰ ځکه چه هغه محکم ښهر کوښي شوي ۱۰
او هغه مينه دَ بيابان په شان بيله شوي او ترکه شوي دَه هلته
به سخي څري او هلته به پنډيږي او ښاخونه به ئي تلف کوي ۱۱ هرکله ۱۱
چه ښاخونه ئي وچ شي نو مات به شي نو به ښځي راشي او وبه ئي
سوزي ځکه چه هغه فهم کونکي قوم نه وه دي دَپارَ به دَ هغه
صانع رحم پري و نه کړي او دَده کاريګر به مهرباني و نه کړي

۱۲ ۱۲ او په دغې ورځې به داسې وشي چه خداوند به دَ رود له
سیلاب نه دَ مصر تر خوړې پورې میوې ټولې کړي او تاسې به یو یو اې
۱۳ بني اسرائیلَ راټول کړي شئ ۱۳ او په هغې ورځې به داسې وشي چه
لویه قرنا به ووهله شي نو هغوي چه دَ آسور په زمکه کښې په مرګ
وِي او هغوي چه دَ مصر په زمکي کښې جلاوطنه وِي را به شِي او
خداوند ته به په مقدّس غره کښې په اورشلیم کښې سجده وکړي*

## اته ویشتم باب

۱ ۱ هې هې په تاج دَ فخر دَ مستانهؤ دَ افرائیم او په هغه مړاوي کیدونکي
زینت دَ جمال دَ دبدبې دده چه دَ ځربې خوړې په سر دي چه له شرابو
۲ مغلوب شوي دي ۲ ګوره دَ خاوند یو سخت او قوّتناک دي لکه طوفان
دَ ږلیٔ او لکه هلاکونکي ګرم باد او لکه ځپوانو او تندو اوبو سیلاب
۳ زمکي ته به ئې په سختې سره وغورزوِي ۳ او په پښو سره به دَ
۴ افرائیمِ دَ مستانهؤ تاج پایمال کړی شِي ۴ او هغه مړاوي کیدونکي
زینت دَ جمال دَ دبدبې دده چه دَ ځربې خوړې په سر دَي داسې به شِي
لکه سرنئ انځیر چه له ووړي وړاندِ ئې کتونکي ووینې او په لاس
۵ کښې وِي وئې نغرِي ۵ په دغې ورځې کښې به دَ خداوند دَ لښکرو باقي امّت
۶ لره تاج دَ جمال او تاج دَ دبدبې وِي ۶ او روح دَ قضا دَ هغه دپارَ چه
په قضا ناست وِي او مردانګي هغو لره چه جنګ دروازي ته ګرزوِي
۷ ۷ لیکن دغه هم په شرابو سره ګمرهان شوي دِي او له نشې
نه تښېدلِي دِي کاهن او نبي په نشې زنګیدلِي له شرابو نغړدلِي له نشې
۸ زنګیدلي دِي په رؤیا کښې ګمراه دِي او په قضا کښې تښبیږي ۸ ځکه
چه ټول میزونه له ټې او له ګندګي نه ډک دِي چه ځای نشته
۹ ۹ هغه به چا ته معرفت ور زده کړي او چاته به په تعلیم سره
وپوهَوِي هغو لره چه له پیو نه پرېکړِي شوِي دِي او هغو ته چه له
۱۰ تِي نه جدا شوِي دِي ۱۰ ځکه چه په فرمان باندِ فرمان فرمان په فرمان

قرض په قرض: قرض په قرض باندِ لږ څه دلته: لږ څه هلته
۱۱ هغه به له دې قوم سره په نبنتي شونډي او په بله ۱۱
ژبه خبري وکړي ۱۲ هغوي چه ده ورته وويل چه دا آرام دي تاسي ۱۲
ستړي ته آرام ورکړئ او دا هغه هوساکيدل دي مګر دَ دوي
رضا نه وه چه واوري ۱۳ نو دوي ته به دَ خداوند قول دا وي چه ۱۳
فرمان په فرمان: فرمان په فرمان قرض په قرض: قرض په قرض لږ
څه دلته؛ لږ څه هلته: تا چه دوي لاړ شي او په ورستو پريوزي
او مات شي او ښکار کړي شي نو به ونيولي شي
۱۴ دې دپاره دَ خداوند کلام واورئ اي ټوقمارانو سرو ۱۴
سردارانو دَ دې قوم چه په اورشليم کښ دي ۱۵ ځکه چه تاسي ۱۵
وويل چه مونږ له مرګ سره عهد تړلي دي او له دوزخ سره
مو اتفاق کړي دې هرکله چه هغه تنده کوروړه وچليږي نو مونږ
ته به را نه شي ځکه چه مونږ دروغ خپله پناه کړي ده او په
خيانت پټ شوي يُو ۱۶ دې دپاره خاوند پروردګار داسي وايي ګوري زه ۱۶
به په صيحون کښ يو کاڼي دَ بنياد دپاره کيږدم کاڼي ازمايلي شوي
يو ګران بها کاڼي دَ کُټ يو بنياد بنياد کړي شوي هغه چه ايمان
راوړي و به نه تښتي ۱۷ او زه به انصاف مزي وګرزوم او صداقت ۱۷
غنډري، نو ږلئ به دَ دروغو پناه وتښتوي او اوبه به پرده وکني –
۱۸ او ستاسي عهد چه له مرګ سره دَي محوه به شي او ستاسو ۱۸
اتفاق چه له دوزخ سره وه ثابت به پاتي نه شي هرکله چه هغه
تنده کوروړه تيريږي نو تاسي به دَ هغي دَ پايمالي دپاره شئ ۱۹ هروار ۱۹
چه هغه تيريږي نو به تاسي ونيسي ځکه چه دا هر صباح دَ ورځي
او دَ شپي تيريږي او پوهيدل دَ خبري به فقط هيبت وي ۲۰ ځکه چه ۲۰
بيچاونړه له غوړيدلو لنډه ده او پټوني له پټولو تنګ دي ۲۱ ځکه ۲۱
لکه چه دَ فراصيم په غره کښ به خداوند وپاسي او لکه چه دَ

جبعون ځنحه به په خوړي کښې په غضب شِي تا چه خپل کار وکړي
هو خپل عجیبه کار او چه خپل عمل وکړي هو خپل عجیبه عمل
۲۲ ۲۲ نو اوس تاسي مه کبرجن کیږئ تا چه بندونو مو سخت نه شِي
ځکه چه ما فناکیدل آوریدلِي دِي چه له طرف دَ خاوند پروردګار
دَ لښکرو په ټوله زمکه کښې حکم پرِ شوي دَي
۲۳ ۲۳ غوږ ونیسئِ او ځما آواز واورِئ و نغوږئِ او قول مِ
۲۴ واورئِ ۲۴ دهقان ټوله ورځ دهقاني کوِي تا چه وکرِي څه؟ او زمکه
۲۵ شدیاره کړِي او هواره ئي کړِي څه؟ ۲۵ نو چه برابره ئي کړِي نو
توروانجِي نه لوِني او زیره نه شیندِي او غنم په کرکونو نه برِدِي او
۲۶ اوربشي په مقرّرځاي او پنبه په یو لو باندِ ۲۶ نو الله دَده په حق
۲۷ سره ښووِنه ورنه کوِي او ورزده کوِي ۲۷ چه توروانجِي په ډنګرو نه
ټکوِي او ګاډِئِ ځرخ په زیري نه ګرزوِي بلکه توروانجِي په سوټي وهِي
۲۸ او زیره په همسا ۲۸ غنم اوړه کوِي لیکن ترابدَ پوري نه ټکوِي او که
۲۹ دَ خپلي ګاډِي ځرخ او آس پرِ وګرزوِي نو نه به ئي ومرِي ۲۹ دا هم
دَ لښکرو دَ خداوند له طرف را وتلِي دِي عجیبه مصلحت عظیم عمل

# نه ویشتم باب

۱ آ هَي هَي په اریئیل په اریئیل هغه کلي چه داؤد پري کوز شه
۲ په کال باندِ کال زیات کړئِ تا چه عید را وګرزوئِ ۲ او زه به اریئیل
په تنګ کړم نو وِیر او غم به وِي او ما لره به لکه اریئیل وِي
۳ ۳ او زه به دَ دائري په شا درباندِ وګرزم او په تا به مورچي ودروم
۴ ۴ نو ته به ټیټه کړي شي او لکه زمکي نه به خبري کوي او له
زمکي نه خبره نرمه راځي او ستا آواز له زمکي نه لکه دیو هسي
۵ به شِي او ستا قول به له زمکي را شغیږي ۵ او ستا دَ دښمنانو
ټولي به لکه دَ میدي ګرد هسي شِي او ټولي دَ هیبتناکو به دَ الوتګي
پروړي په شان شِي او دا به ناڅاپه په یو دم کښې وشِي ۶ دَ

لښکرو دَ خداوند له لورِي به و لټولي شِي له رعدَ او له زلزلي
سره او له لوي آواز سره له ګرزيدونکي باد او له سيلئِ او دَ
خوړونکي اور له لمبي سره ۷ او هغه ټولي دَ قومونو چه په اريئيل ۷
لښکر کونکي دِي ټول لښکر کونکي په دي او دَدي په قلاؤ او هغوي
چه دا تنګوِي دَ خوب او دَ شپي دَ رؤيا په شان به شِي ۸ او داسي ۸
به وِي لکه چه وږيَ خوب وينِي چه دي خوړِي بيا ويښ شِي او ګوره
ځان ئي تش وِي او لکه چه تږي خوب وينِي چه دَي څښِي بيا ويښ
شِي او ګوره چه ضعيف وِي او ځان ئي اشتها لرِي هم هسي به
هغه ټول قومونه دَ ټولبووِي چه دَ صيهون په غره لښکر کونکي دِي
۹ ودريږئِ او حيران شئِ خوښئِ کوئِ او رانده شئِ هغوي مست ۹
دِي او نه له شرابو تنبيږي او نه له نشي نه ۱۰ ځکه چه خداوند ۱۰
په تاسي باندِ پرناکونکي روح توي کړي دَي او ستاسي سترګي چه
نبيان دِي پټي کړِي دِي او ستاسي په رئيسانو چه کتونکي دِي پرده
پريوته ۱۱ او تاسي ته ټولي مکاشفي و هغه مهر کړِي شوِي کتاب ۱۱
په شان شوي او ځوک ئي چا عالِم ته ورکړِي او ورته ووايِي چه
دا ولوله که نه او هغه ووايِي چه زه طاقت نه لرم ځکه چه مهر
کړِي شوي دي ۱۲ او يا هغه کتاب چا ته ورکړِي شِي چه بي علمه ۱۲
وِي او ورته وويلي شِي چه دا ولوله که نه او هغه ووايِي چه زه په
خط نه پوهيږم
۱۳. نو خداوند وايِي چه دا قوم ما ته په خولي سره رانږدي ۱۳
شوي دي او په شونډو ئي خما اِکرام کړِي دَي ليکن زړه ئي رانه لرِي
شوي دي او دَدوي ويره له ما نه دَ سړو ورزده کړي حکم دَي ـ
۱۴ دي دپاره به زه راوګرزم او په دي قوم به عجب او عجيبه کار وکړم ۱۴
نو به حکمت دَ حکيمانو دده نابود شِي او فهم دَ فهمنده‌ؤ دده به
پټ شِي ۱۵ هَي هَي هغو لره چه باريکي کوِي تاچه دوي خپل مصلحت نه ۱۵

خداوند نه پټ کړي نو به دَ دوي کارونه په تیاري کښ کیږي او وايي
١٦ به چه سونږ څوک ويني او څوک مو پیژني ١٦ اي ستاسو اړولو لره کټره
کلال کاریګر به دَ خټي کار په شان وګڼلي شي څه؟ تا چه مصنوع
له خپل صانع نه ووايي چه زه يې کړي نه يم او يا به کاریګري له
خپل کاریګر نه ووايي چه دي نه پوهیږي
١٧ ١٧ ګټره په لږکوټي مُدي کښ به لبنان باغ ونه ګرزي او
١٨ باغ به ځنګل وګڼلي نه شي څه؟ ١٨ او په دغي ورځي کښ به کوڼه
دَ کتاب خبري واوري او دَ ړندو سترګي به په تاريکي او په تياري
١٩ کښ ويني ١٩ نو بد محتاجان به خداوند زيانه خوښي وکړي او مسکينان
٢٠ به په قدوس دَ اسرائيل خورمي وکړي ٢٠ ځکه چه هيبتناک بيديا
شول او ټوقماران فنا شول او ټول تيار دَ بدکاري به پريکړي شي
٢١ ٢١ هغوي چه انسان په يوي خبري خطاکار ګرزوي او په دروازي
کښ منصف لره دام لګوي او صادق په دروغو سره اړوي
٢٢ ٢٢ دي دَپارَ هغه خداوند چه ابراهيم يې خلاص کړ دَ يعقوب
کور ته داسي وايي چه اوس به نه يعقوب خجل شي او نه به يې مخ
٢٣ زيړ شي ٢٣ بلکه هرکله چه دَده اولاد څما دَ لاسونو کار چه دَ دوي
په مينځ کښ دي ووينې نو څما دَ نامه تقديس به وکړي او دَ يعقوب
دَ قدوس تقديس به وکړي او دَ اسرائيل دَ الله ويره به وکړي او
ګمراهان دَ روحونو به فهم وپيژني او نافرمانان به تعليم بياموي +

## دیرشم باب

١ هي هي په هغو نافرمانو چه هغه مصلحت کوي چه له مانه نه
دي اوتاړي اوبي ليکن نه څما په روح سره تا چه خطا په خطا
٢ زياته کړي ٢ هغوي چه درومي تا چه مصر ته ورکوز شي او څما
له خولي پوښتنه نه کوي تا چه دَ فرعون وکوټ ته پناه ورورې او
٣ دَ مصر په سوري په امان شي ٣ نو به تاسي ته دَ فرعون کوټ

۴ نجالت او امان نيول په مصر کښې پښيماني وګرزي ۴ ځکه چه دده
سرداران په صوعن کښې وُو او دده قاصدان حانيس ته ورسيدل
۵ ۵ او ټول له هغه قومَ چه دوي ته ئې فائده نه رسوله خجل به شي
نه دَ مددګارِي او نه دَ فائدي دَپارَ بلکه دَ شرمندګي او دَ پښيماني
۶ دَپارَ ۶ دَ جنوب دَ چارپايانو په باب وحي دَ سختيُ او دَ تنګيُ په
زمکي کښې چه له هغي نه زمرئ او زمري تورا او الوتونکي مار راځي هغوي
خپل دولت دَ خرګيو په اوږي او خپلي خزاني دَ اوښو په کوميو
۷ هغه قوم ته چه فائده ئي نه رَسوله ورورِي ۷ ځکه چه مصر
عبثه مددګارِي کوِي دي دَپارَ ما ناسته رهبه وبلله
۸ ۸ اوس راشه او دا دَدوي دَ وړاندِ په تختيِ وليکه او په
کتاب کښې وښکه تا چه دَ راتلونکو زمانو دپارَ ترابدَ پوري تر
۹ ابدالآبادَ پوري (ګواهي) وِي ۹ ځکه چه دغه يو نافرمانه قوم دروغژن
اولاد دي هسي اولاد چه وئي نه غوښتل چه شريعت دَ خداوند
۱۰ واوري ۱۰ هغوي چه ليدونکو ته وايِي چه تاسي مه وينيِ او کتونکو
ته چه مونږ ته سم برابر څيزونه مه ګوريِ له مونږ سره په ناز
۱۱ خبري کويِ دَ فريب خبري وګوريِ ۱۱ له لاري ګوښي شيِ له سړک
نه وګرزيِ څمونږ له وړاندِ د اسرائيل قدّوس لري کړيِ
۱۲ ۱۲ دي دَپارَ دَ اسرائيل قدّوس داسي وايِي چه تاسي دا کلام
رد کړ او په ظلم او په کږو تللو مو توکّل کړي دئ او په دغو دوارو
۱۳ مو تکيه کړي ده ۱۳ دي دَپارَ به دا بدِي تاسي لره داسي وِي لکه چه
يو ماتونکي چاودون چه په لوړ ديوال کښې راځي نو دَ هغه نړيدل
۱۴ په يو ساعت کښې ناڅاپه راځي ۱۴ او مات شي لکه ماتيدنه دَ
لوښو دَ کلالانو چه بيصرفي ريزريز شوي وِي تر دي حده چه دَ
هغه په ټکړو کښې يو کودري هم دَ اور اخستلو دَپارَ له نغري نه
موندلي نه شي او يا دَ اوبو اخستلو دَپارَ له کوهي نه

۱۵ ۱۵ ځکه چه خاوند پروردګار قدّوس دَ اسرائیل داسي وائي
په راګرزیدلو او په پست کیدلو سره به خلاص شئ په خاموشي
۱۶ او په توکّل کښ به ستاسي قوّت وي لیکن تاسي نه وغوښتل ۱۶ او
وموَ ویل چه نه بلکه په آسونو به وتښتو دي دَپارَ به وتښتئ او په
۱۷ تیزو آسونو به سوریږو دي دَپارَ ستاسي شړونکي به چابک وي ۱۷ دَ
یوه له غوبهارَ به زر تښتي دَ پنځو له غوبهارَ به وتښتئ تر دي حده
چه تاسي به دومره پاتي شئ لکه ستنیه دَ غوره په سر او لکه نښان
۱۸ په غونډئ ۱۸ او دي دَپارَ به خداوند نظر وکړي چه په تاسي فضل
وکړي او دي دَپارَ به پورته شي چه په تاسي رحم وکړي ځکه چه
۱۹ خداوند الله عادل دَي ټولو منتظرانو دَده ته خوښي دَه ۱۹ ځکه هغه
خلق چه په صیحون کښ دي په اورشلیم کښ به واوسي په ژړا سره
به و نه ژاړي ستادَ چغي دَ آواز په وقت به په تا فضل وکړي هرکله
۲۰ چه واوري تا ته به ځواب درکړي ۲۰ او اګر که خاوند تاسي ته دَ تنګسیا
ډوډئ درکړي او دَ سختئ اوبه نو بیا به ستا معلمان پټ نه شي
۲۱ بلکه ستا سترګي به ستا معلمان ویني ۲۱ او ستا غوږونه به ستا
دَ وروستو آواز اوري چه وائي چه لار دا ده په دي ځئ هرکله چه
۲۲ تاسي په ښي یا په کینړ لوري ګرزئ ۲۲ نو تاسي به دَ خپلو بتانو
تراشلي دَ سپینو زرو تختي او ستاسي دَ سرو زرو دَ بتانو جړاؤ
بخسي کړئ ته به هغه دَ حیضي دَ پرزي په شان وغورزوي ته به
۲۳ هغي ته ووائي چه ووزه ۲۳ نو بیا به ستا فصل ته چه زمکه دِ پِکښِ
لرلي ده باران درکړي او دَ زمکي دَ غلي ډوډئ نو به ځورب او مزي
۲۴ وي نو په دغي ورځي به ستا څاروي په فراخو چمنو کښ څري ۲۴ او
هغه غوایان او خرونه چه دَ زمکي کار کوي په مالګي خور به خوري چه
۲۵ په چارښاخه او په چج پاک شوي وي ۲۵ او به هر لوي غره باندِ او په
هري لوړي غونډئ به دَ لوي جنګ په ورځ هغه وقت چه برجونه پرېوزي

۲۶ چینې او دَ اوبو توبونه به وِي ۲۶ او دَ سپوږمۍ رڼړا به دَ نمر دَ رڼړا
په شان وِي او رڼړا دَ نمر به په اوه کونه شي لکه رڼړا دَ اوو ورځو
په هغې ورځې چه خداوند دَ خپلو خلقو ماتوالي وتړي او دَ خپل ضرب
وزخم ته شفا ورکړي

۲۷ ۲۷ گوره نوم دَ خداوند له لرې راځي دَده غضب بلیدونکي دَی
او ډیر لوګي پورته کونکي دي دده شونډي له قهر ډکي دِي او ژبه
۲۸ ئې لکه خوړونکي اور ۲۸ او دم ئې لکه ډوبونکي ناله چه ترغاړي
پورې رسیږي دَپارَ دَ غلبیلولو دَ قومونو په غلبیل دَ هلاکت او په
۲۹ ژنیو دَ خلقو گمراه کوونکي ولونه ۲۹ او تاسي لره به سندري وِي
لکه دَ پاک عید په شپې کښي او خوښي دَ زړه لکه سیر کونکي په
توري سره تا چه دَ خداوند غره ته دَ اسرائیل پرښي ته ورشي
۳۰ ۳۰ او خداوند به دَ خپل جلال آواز واوروي او دَ خپل بازو کوزول
به ښکاره کړي دَ غضب په تیزي سره او دَ خوړونکي اور له لمبې
۳۱ سره له گرم باد او سیلاب او دَ ږلیِ له کاڼو سره ۳۱ ځکه چه
دَ خداوند له آوازه به اشور ریزمریز شي په سوټي به ئې ووهي
۳۲ ۳۲ او دَ هغه دَ مقرّري همسا هر وار چه خداوند ئې چلوي په
ټنبلونو او په سنارونو سره به وي او په غوریږ کونکي جنگونو
۳۳ سره به جنگ کوي ۳۳ ځکه چه دوزخ دده له وړاندي مدي نه
جوړ شوي او تیار شوي دي دغه هم دَ بادشاه دَپارَ ژور او ارت
جوړ شوي دي دَ هغه توده اور او ډیر لرګي دِي دم دَ خداوند به
لکه دَ گوگړو نوي هغه بل کړي ✣

## یو دیرشم باب

۱ آ هَي هي په هغو چه دَ کومک دَپارَ مصر ته ورکوزیږي او په آسونو
باندي تکیه کړي او په گاډیو توکل کړي چه دغه ډیري دِي او په
سوارو چه دغه قوتناک دي او دَ اسرائیل قدوس ته نظر نه کړي

۲ او خداوند نه لټوِي ۲ او دي هم حکيم دي او بدِي به پرِ راولي او له
خپل کلام نه به و نه گرزي او په کور دَ شريرانو او په کومک دَ
۳ بدکارانو به وخيژي ۳ او مصريان چه دِي سړي دِي خدايان خو
نه دِي او اسونه ئي جُسي دِي روح خو نه دِي او هرکله چه خداوند
به خپل لاس اوږد کړي نو مدد ورکونکي به وښوئيږي او مدد آخستونکي
۴ به پرېوزي او دوي دواړه به سره فنا شي ۴ ځکه چه خداوند ما ته
داسي ويلي دِي لکه چه هغه زمري او دَ زمري بچي ئي په خپل ښکار
باندِ غورېږي چه يو ټولي له شپنو نه پرِ را وبللي شي او دي ئي
له آواز نه نه ويريږي او ذدوي له غوغا خپل ځان ذليل نه کوي داسي
به خداوند دَ لښکرو دَ صيحون له غره او له غونډيو ئي دَ جگړيدلو
۵ دَپارَ راکوز شي ۵ لکه رپيدونکي مرغان هسي به خداوند دَ لښکرو
دَ اورشليم حمايت وکړي حمايت به ورکړي نو به ئي خلاص کړي
عفوه کړي نو آزاد به ئي کړي
۶ ۶ هغه ته رجوع وکړئ چه ور نه بني اسرائيل په کناره کيدلو
۷ سره گرزيدلي دِي ۷ ځکه چه په دغي ورځي کښ به هر يو دَ سپينو
او دَ سرو زرو بتان چه ستاسو لاسونو دَ ستاسو دَپارَ دَ خطا جوړ کړي دِي
۸ وغورزوي ۸ نو آشور به دَ هغه په توري چه سړيَ نه دي وپرزولي
شي او دَ غير انسان توره به ئي وخوري نو دَ توري له مخي به وتښتي
۹ او ذده مختاران به تر جزيي لاندي وِي ۹ او ذده کمر به له ويري زائل
شي او ذده رئيسان به له نښانَ ولړزيږي هغه خداوند وائي چه
په صيحون کښ دده اور دي او په اورشليم کښ ئي تنور *

## دوديرشم باب

۱ آ گوره يو بادشاه به په صداقت سره بادشاهي وکړي او رئيسان
۲ به په عدالت سره رئيسي وکړي ۲ او يو سړي چه له باد نه به
دَ پناگاه په شان وِي او له سيلاب نه لکه پټنگئ لکه چيني

دَ اوبو په وچ ځاي کښ لکه دَ لوي کمر سوري دَ ستوماني په زمکه
کښ ۳ او سترګي دَ کتونکو به نه ستړي کيږي او غوږونه دَ اوريدونکو ۳
به نغوتل کوي ۴ او زړونه دَ بيړي کونکو به په علم پوهيږي او ژبي ۴
دَ تړتړيو به وفصيح خبرو کولو ته بيړه کوي ۵ او بيا به بخيل سخي ۵
وبللي نه شي او نه به مکرجن ته فاضل وويلي شي ۶ ځکه چه ۶
بخيل به په بخيلي سره خبره کوي اوزړه به ئي ګناه کوي تا چه
منافقت وکړي او په خداوند دَ تهمت خبري وکړي او دَ وږي
ځان خالي کړي او دَ تږي ځښناک پريکړي ۷ او دَ مکرجن وسلي زبوني ۷
دي او دي په خباثتونو امر کوي تاچه محتاجان په دروغو خبرو
هلاک کړي ځو چه مسکين په حقي خبري کوي ۸ او سخي چه دي ۸
په سخاوتونو امر کوي او دي په سخاوتونو سره پاڅي
۹ اي آسوده ښځو پاڅئ ځما آواز واورئ اي برقرارو ښځو ۹
ځما خبره ونغوږئ ۱۰ څو ورځي باند کال به اي برقرارو ولړزيږئ ۱۰
ځکه چه دَ انګورو دَ شوکولو وقت تير شه دَ ټولولو وقت به ئي
را نه شي ۱۱ اي آسوده ؤ وويريږئ اي برقرارو ولړزيږئ لوڅي اوبربنډي ۱۱
شئ او شيرئ په ملا وتړئ ۱۲ دَ اشتها غوښتونکو پيتو دَ پار ټي ۱۲
وټکوئ او دَ ميوه دارو تاکونو دَ پار ۱۳ ځما دَ خلقو په زمکه کښ ۱۳
به اغزي او کروندي زرغونيږي هو په ټولو کورونو دَ خوښي دَ
خوشحالي په ښهر کښ ۱۴ ځکه چه محلونه به ترک کړي شي ټولي ۱۴
دَ ښهر به پريښولي شي غونډئ او برجونه به تر ابد پوري غارونه
شي آرامګاه دَ ګورخرونو او څرځاه دَ ګنډکونو ۱۵ تر هغه پوري ۱۵
چه په مونږ باند له پاسه روح رانوي شي نو بيابان به بستان
شي او بُستان به ځنګل وګڼلي شي
۱۶ نو په بيابان کښ به حق اوسي او په بُستان کښ به عدالت ۱۶
ديره شي ۱۷ او کار دَ عدالت به سلامتي وي او عمل دَ عدالت به ۱۷

۱۸ تر ابدَ پوري قراري او آسودګي وِي ۱۸ او ځما خلق به دَ سلامتي پـه
۱۹ میشتوګنه کښې اوسي او دَ آسودګي په مینو اودامن په محلونو کښې ۱۹ او
دَ ځنګل له خرابېدلو سره به بږلئِ پرېوزي او ښهر په ښکته تيټه
۲۰ کړي شي ۲۰ خوشحال تاسي يئِ اي په ټولو اوبو کرونکو چه دَ غوايي
اودَ خره پښې ورولئِ *

## دري ديرشم باب

۱ آهي په تا باندِ اي خرابونکي او ته خراب کړي نه شوي او اي فريب
کونکي اوله تا سره فريب کړي نه شه هرکله چه ته له خرابولو وزګار
شي نو ته به خراب کړي شي او هرکله چه ته له فريبَ فارغ شي نو
۲ له تا سره به فريب وکړي ۲ اي خداوندَ په موږ فضل وکړه موږ
تا ته انتظار کوو ته په هر صباح دَدوي بازو شه او دَ سختي په
۳ وقت کښې ځموږ نجات هم ۳ له آواز دَ غوريږ نه قومونه وتښتېدل
۴ ستا له پورته کيدلو امتونه تار په تار شول ۴ او ستاسي لوټ به
دَ مچخو دَ ټولولو په شان ټول کړي لکه دو دَ ملخو په هغه باندِ
۵ به دو وکړي ۵ خداوند تعالىٰ دي ځکه چه په اعلىٰ کښې ساکن دَي
۶ صيحون ئي په عدالت او په صداقت ډک کړي دَي ۶ نو ستا دَ وختونو
به امن وي او فرېماني دَ خلاصون او دَ حکمت او دَ معرفت دَ خداوند
خوف به دده خزانه وِي

۷ ۷ ګوره دده بهادران دَ باندِ ناري وهي او دَ سلامتي ايلچيان
۸ په ورت ورت ژاړي ۸ سړکونه خالي شول دَ لاري تيريدونکي نابود
شول عهد ئي مات کړي دي ښهرونا ئي سپک کړل او په سړي پروا
۹ نه لري ۹ زمکه وِير کوي او مراوي کيږي لبنان رسوا او وچيږي شارون
دَ صحرا په شان شه باشان او کرمل پراګنده شول پاڼي غورزوي
۱۰ ۱۰ اوس به زه وخيژم خـــــداوند وايي اوس به زه
۱۱ وخيژم اوس به هسک شم ۱۱ تاسي به په پخو حامل شئ او درورِه

به وزیږوئ ستاسي سا اور دي و به موخوري ۱۲ او خلق به دَ چوني ۱۲
بالن شي پريکړي اغزي به په اور وسيزلي شي
۱۳ اي لري والو واورئ چه ما څه وکړل او اي نزدي والو څما ۱۳
حمله وپيژنئ ۱۴ خطاکاران به په صيحون کښ. وترسيږي منافقان په ۱۴
رپيدلو گرفتار شول څوک له مونږ نه په خوړونکي اور کښ اوسيدلي
شي څوک به له مونږ نه په ابدي بالنو کښ واوسي ۱۵ هغه چه په ۱۵
صداقت تلونکي دي او په راستي خبري کوونکي دي هغه چه دَ ظلمونو
سود سپک گنړي هغه چه دَ رشوت له اخستلو لاسونه څنډي هغه
چه دَ خونونو له اوريدلو نه غوږونه بند لري او دَ بدئ له کتلو سترگي
پټوي ۱۶ نو هغه به په اعلاو (مکانونو) کښ اوسي دَ کمرونو کوټونه به ۱۶
ئي پناگاه وي هغه ته به ډوډئ ورکړي شي او اوبه دَ هغه به په
امان شوي وي
۱۷ ستا سترگي به بادشاه دده په جمال کښ ووينې لري ارته ځمکه ۱۷
به ووينې ۱۸ ستا زړه به ويره په ياد کړي چرته دی هغه کاتب چرته ۱۸
دي هغه محصل چرته دي هغه چه برجونه ئي گنړل ۱۹ نه به هغه ۱۹
زبردست ټولي وينې هغه ټولي چه لغت ئي له معلومولو نه لاندزن دي
دَ نبنتي ژبي وال چه نه پرې پوهيږې ۲۰ نه صيحون ځمونږ دَ عيدونو ښهر ۲۰
وگوره ستا سترگي به اورشليم ووينې دَ آسودگئ مينه داسي کيږدئ
چه نه خوځيږي او مږوي به ئي تر ابدَ وښکلي نه شي او له طناؤنو
به ئي هيڅ شئ پريکړي نه شي ۲۱ بلکه هلته به خداوند ذوالجلال له ۲۱
مونږ سره وي د ارتو دريابو او والو په ځاي کښ چه په هغه کښ
به چپي‌داري بيړئ سير نه کوي او لوي جهازونه به نه په کښ تيريږي
۲۲ ځکه چه خداوند ځمونږ قاضي دي او خداوند مو شارع دي خداوند ۲۲
مو بادشاه دي دي به مونږ خلاص کړي ۲۳ ستا رسئ سستي شولي ۲۳
څوک ئي دَ ستني بيخ ټينگولي نه شي څوک بادوان پرانتلي نه شي هرکله

۲۴ چه دَ ډیر لوټ مال وویشلي شي نو ګډانو لوټ واخست ۲۴ او اوسیدونکي
به و نه وایي چه زه رنځور یم هغه خلق چه په کښې اوسي بدیٔ یٔ به عفوه شي

## څلور دیرشم باب

۱ ۱ اي امّتونو رانژدي شئ چه واورئ او اي خلقو غوږونه ونیسئ تا
۲ چه زمکه او ډکوالي یٔ واوري دنیا او ټول وتونکي یٔ ۲ ځکه چه دَ
خداوند قهر په ټولو امّتونو دَي او غضب دَده په ټولو فوځونو
۳ دَ هغو ده وسپارل او ذبحې ته یٔ ورکړل ۳ دَ دوي وژلي به وغورزولي
شي او بوېونه دَ مردارو به یٔ پورته شي او غرونه به دَ دوي له وینو
۴ وبهیږي ۴ او ټول لښکر دَ آسمانو به فنا شي او آسمانونه به دَ
ملاتفي په شان ونغښتلي شي او دَ هغه ټول لښکر به ورژیږي لکه
دَ انګورو دَ پاڼو یه رژیدل او لکه ریژیدونکي له انځیر نه
۵ ۵ ځکه چه زما توره به په آسمانونو کښې سیرابه شوه ګوره
په ادوم به راکوزه شي او په هغه ټولي چه عدالت ته سپارلي دي
۶ ۶ دَ خداوند توره له وینو ډکه ده غوړه شوي په وازګو دَ ګډورو
او دَ ورغومو په وینو دَ مږونو دَ ګردو په وازګو ځکه چه خداوند په
بصره کښې یوه ذبیحه لري او دَده دبحه په ادوم کښې عظیمه ده -
۷ ۷ او له هغي سره وحشي غویان را پریوزي او سخي له عوڅکو سره
او ددي زمکه به له وینو سیرابه شي او دَ دوي خاوري به له وازګو غوړي
۸ شي ۸ ځکه چه خداوند دَ انتقام ورځ او دَ جزا کال لري دَ صیحون دَ دعوي دَپاره
۹ ۹ او دَ هغي تویونه به زفت شي او خاوري یٔ ګوګړ او دَ دي زمکه
۱۰ به بلیدونکي زفت شي ۱۰ شپه او ورځ به نه مړي تر ابده به یٔ لوګي
خیژي تر مُدي پوري به خراب کړي شي تر ابدالآباد پوري څوک نه وي
۱۱ چه په کښې وګرزي ۱۱ او دَ هغي وارثان به کوتلي او زیږکي شي او
کنګي او قارغان به په کښې اوسي او په هغي به دَ ویراني تار اوږد کړي
۱۲ شي او خالي والي میچه ۱۲ دَ دي له اشرافو به دومره څوک نه وي چه

دَ بـادشاهِي دَپارَ ئي وبولِي او دَدي ټول شاهزادګان به نابود وِي
۱۳ ۱۳ او ددي په محلونو کښ به اغزِي زرغونيږِي او دَدي په کوټونو کښ
جلبنګ او اغزِکي زرغونيږِي نو به دَ شغالانو ميشتوکه او دَ شترمرغانو
۱۴ کلي شِي ۱۴ او بيابانِي وحشيان او ليوګان به ملاقات سره کوِي او بيابانِي
وځ به خپل ملګري وربولِي هلته به ګوګشتو آرام کوِي او دَځان دَپارَ
۱۵ به ځاي مومِي ۱۵ هلته به الوتونکي مار دوغلي جوړي کړِي او هګيِ به
وکړِي او بچي به وکړِي او تر خپل سورِي لاندي به ئي ساتِي او هلته
۱۶ به شاهينکِي يو له بل سره جمعَ کيږِي ۱۶ نو ناسي دَ خداوند په کتاب
کښ دريافت وکړِئ او وئي لولِئ يو له دغو به ورک نه شِي هيڅ يو به
خپل ملګرِي نه غوارِي ځکه چه دَده خولِي امر کړِي دَي او دَده روح
۱۷ دي چه جمع ئي کړل ۱۷ او ده دَ هغو دَپارَ هسک واچاوه او دَده لاس
په مزِي سره ويش ورته وکړِ تر ابدَ پورِي به ئي وارثه وِي زمانه په
زمانِي به په هغي کښ سکونت کيږِي ❖

# پنځه ديرشم باب

۱ ۱ بيابان او وچه زمکه خوښِي کوِي او صحرا خورمِي او لکه نرګس غوړيږِي
۲ ۲ په غوړيدلو به وغوړيږِي او په خورمِي به خورمِي وکړِي او سندرِي
به ووايِي دَ لبنان جلال به هغه ته ورکړِي شِي دبدبه دَ کرمل
او دَ شارون هغوِي به دَ خداوند جلال او ښکلا دَ الله دبدبه ووينِي
۳ ۴ ۳ سُست لاسونه ټينګ کړِئ او رپيدونکِي زنګنونه ټم کړِئ ۴ ويريدونکو
زړونو ته ووايِئ ټينګ شِئ مه ويريږِئ ګورِئ ستاسي الله بدله
اخستل به راشِي جزاء دَ الله: دَي به راشِي او خلاص به موکړِي
۵ ۵ هغه وقت به دَ ړاندو سترګي پرانتلي شِي او غوږونه دَ
۶ کڼو به واز کړِي شِي ۶ هغه وقت به ګډ دَ اوسَي په شان ټوپونه
کوِي او دَ ګونګ ژبه به سندري وايِي ځکه چه په وچه کښ به اوبه
۷ وخوټيږِي او په صحرا کښ ويالي ۷ او ريګِ روان به ډندونه شِي او دَ

تندي ځاي به دَ اوبو چینې دَ شغالانو په میشتوکنه کښې دَ هغه
۸ په پنهغالي کښې به دَ کانو او دَ دُرمو ځاي وِي ۸ او هلته به سړک
او لار وِي او هغې ته به مقدّسه لار ویلې شِي په هغې کښې به هیڅ
نجس تیر نه شِي بلکه هغه به دَدوي وِي هغه چه په لارې ځي
۹ اګر که نابلد وِي لار به ورکه نه کړِي ۹ هلته به زمرِي نه وِي او نه
به ښکارِي ځناور ورخیژِي او نه به هلته مونده شِي بلکه خلاص
۱۰ کړِي شوِي به په کښې ګرزِي ۱۰ او دَ فدیې خلاص کړِي دَ خداوند به
را وجاروزِي او صیحون ته به په سندرو راشِي او ابدِي خوښِي به ئِ
په سرونو وِي خورمي او خوښي به حاصله کړِي او غم او آهونه به وتښتِي

## شپږدېرشم باب

۱ ۱ او دَ خزقیاه بادشاه په څورلسم کال داسي وشول چه سناخریب
بادشاه دَ اشور په مضبوطو ښهرونو دَ یهودا وخوت او وائِ خستل
۲ ۲ او دَ آشور بادشاه ربشاقي له لاخیش اورشلیم ته بادشاه خزقیاه
ته لوي لښکر سره واستاوه نو هغه دَ لوي تالاؤ دَوالي څنګه چه دَ
۳ دوبیانو دَ پټي په سړک دَي ودریده ۳ نو الیاقیم څوي دَ حِلقیاه چه
په کور (مختاروه) او شبنه منشي او یوآخ څوي دَ آساف چه ناظر وه
ور وتل
۴ ۴ نو ربشاقي ورته وویل چه تاسي خزقیاه ته ووائِ

لوي بادشاه

دَ آشور داسي وائي چه دا څه توکّل کول دي چه ته پرې توکّل کوي -
۵ ۵ زه وایم چه دَ شوندو خبره مصلحت او دَ جنګ دَپارَ سختي دَه او اوس
۶ په چا توکّل کوي چه را نه یاغي يي ۶ تاخو په لوړ ذدعي ښبلي درمي (یعني)
په هغه مصر چه څوک په هغه تکیه کوي دَ هغه په ورغوي ننه دځي
او سوري به ئي کړي هم هسي دي فرعون بادشاه دَ مصر دَ هغو ټولو
۷ دَپارَ چه په ده توکّل کونکي دِي ۷ او که ته راته ووائي چه په خداوند

ځمونږ الله مو توکّل کړي دئ نو دا هغه نه دي څه چه حزقیاه ئي
لوړ ځایونه او مذبحونه لري کړل او یهودا او اورشلیم ته ئي وویل
۸ چه تاسي دَ دغه مذبح دَ وړاندِ سجده کوئ ۸ نو اوس دَ خپل خاوند
دَ آشور دَ بادشاه کروي شه که نه نو زه به تا ته دوه زره آسونه
درکړم که ته توان لري چه له خپله لوري په هغو څوک سواره کړي
۹ ۹ نو ته به څرنګ ځما دَ خاوند له وړوکو غلامانو دَ یوه سردار مخ
وګرزوي او تا خو په مصر باندي دَ ګاډیو او دَ آسونو دَپارَ توکّل
۱۰ که ۱۰ او اوس زه بي دَ خداوندَ په دي زمکي وختم چه خرابه ئي
کړم څه؟ خداوند راته وویل چه دي زمکي ته وخیژه اوخرابه ئي کړه
۱۱ ۱۱ نو الیاقیم او شبنه او یوآخ ربشاقيَ ته وویل چه ته له خپلو
غلامانو سره په آرامي خبري وکړه چه مونږ پري پوهیږو او له مونږ
سره په یهودي ژبي سره دَ هغو خلقو په اوریدو کښ چه په دیوال
۱۲ دِي خبري مه کوه ۱۲ نو ربشاقيَ وویل چه باري زه ستا خاوند او
تا ته ځما خاوند استولي یم تاچه په دي ژبي سره خبري وکړم نه هغو
ته چه په دیوال باندِ ناست دَي تاچه دوي خپل غول له تاسي سره
وخوري اوخپلي متیازي وڅښي
۱۳ ۱۳ بیا ربشاقيَ ولاړ شه او په یهودي ژبي سره په لوي آواز
ناره کړه چه تاسي خبره دَ لوي بادشاه دَ آشور دَ بادشاه واوریِ -
۱۴ ۱۴ چه بادشاه داسي وايي چه حزقیاه دِ تاسي و نه غولوي ځکه چه
۱۵ دي نه توانیږي چه تاسي خلاص کړي ۱۵ او نه دِ حزقیاه تاسو لره په
خداوند توکّل کونکي وګرزوي چه ووايي چه مونږ به خداوند په خلاصون
سره خلاص کړي او دا ښهر به دَ آشور دَ بادشاه لاس ته ورکړي
۱۶ نه شي ۱۶ دَ حزقیاه مه اوريِ ځکه چه دَ آشور بادشاه داسي وايي
له ما سره صلحه وکړئ او ما ته راووزئ او هر یو دِ له خپلو انګورو
او له حپل انځیرُ خوري او هر یو دِ دَ خپل کوهي اوبه څښي -

۱۷ ۱۷ ترڅو چه زه راشم او تاسي يوى زمكي ته چه ستاسي دَ زمكي په شان
ده بوزم دَ غنمو زمكه او دَ شرابو دَ ډوډئ او دَ انګورو زمكه
۱۸ ۱۸ تاسي دِ خزقياه و نه غولوِي چه وائي چه خزقياه به مو خلاص
كړِي كَنره خدايانو دَ امّتونو هر يوه خپله زمكه دَ آشور دَ بادشاه
۱۹ له لاس نه خلاصه كړي دَه ۱۹ ترڅه دَ حمات او دَ ارفاد خدايان
چرته دِي دَ سفروايم خدايان چرته دِي كَنره هغو سامريه زما له
۲۰ لاس نه خلاصه كړه ۲۰ له ټولو خدايانو دَ دي زمكو څوك دَئ چه
خپله زمكه ئ زما له لاس نه خلاصه كړي دَه ترڅو چه خداوند زما
۲۱ له لاس نه اورشليم خلاص كړِي ۲۱ نو دوي چپ شول او دَ يوي
خبري ځواب ئ ور نه كړ ځكه چه فرمان دَ بادشاه داسي وه ويلي ئ
۲۲ وُه چه تاسي ځواب مه وركوئِ ۲۲ نو الياقيم ځوي دَ حلقياه چه په
كور مختار وه راغي او شبنه منشِي او يوآخ ناظر ځوي دَ آساف
راغلل خزقياه ته ورغلل اوجامي ئ څيرلي وي او دَ ربشاقيَ په خبرو ئ خبر كړ

## اوه ديرشم باب

۱ ۱ نو داسي وشول چه حزقياه دغه واوريدل خپلي جامى ئ څيري كړِي
۲ او شيرِئ ئ واغوستله او دَ خداوند كور ته ننوت ۲ او الياقيم چه
په كور مختار وه او شبنه منشِي او سپين ږيرِي دَ كوهنانو چه په
۳ شيرئ پوشيده وُو واشعياه نبِي ځوي دَ آموص ته واستول ۳ نو
دوي هغه ته وويل چه خزقياه داسي وائِي چه دا ورځ دَ سختِي او
دَ تنبيه او دَ سپكي دَه ځكه چه ځامن زيږيدلو ته نزدي دِي او په
۴ زيږيدلو قوّت نشته ۴ كوندي خداوند الله ستا خبره د ربشاقيَ
چه دَ آشور بادشاه خاوند دده استولي دَي واورِي تاچه دَ ژوندِي
الله سپكه وكړِي نو دَ هغي خبري په سبب چه خداوند الله ستا
آوريدلي دَه سزا به وركړِي نو ته دَدغو باقِي موجودو دپارَ دعا پورته
۵ ۶ كړه ۵ نو دَ خزقياه بادشاه غلامان اشعياه ته ورغلل ۶ نو دوي ته

اشعیا وویل چه تاسي خپل خاوند ته داسي وایئ چه ته دَ هغي خبري
په سبب چه وادِ وریدله مه ویریږه هغه چه دَ آشور دَ بادشاه
۷ نوکرانو راته پري کفر ویلي دي ۷ ګوره زه به په هغه کښ یو روح
واچوم او یو خبر به واوري او خپلي زمکي ته به وجاروزي او
دَ ده په زمکه کښ به ئې په توري پرېباسم
۸ ۸ نو ربشاقي وجارووت او دَ آشور بادشاه ئې وموند چه
له لبنه سره جنګیده ځکه چه ده واوریدل چه هغه له لخیش
۹ نه وکوچیده ۹ او دَ ترهاقه بادشاه دَ کوش خبر واوریده چه ده ته
دَ جنګ دَپارَ راوتلي دي نو هرکله چه وائي وریدل حزقیاه ته ئې ایلچیان
۱۰ واستول و ئې ویل ۱۰ چه حزقیاه بادشاه دَ یهودا ته په خبرو کښ وواییِ
چه تا ته دِ ستا الله چه ته توکّل پري کوي فریب درنه کړي چه وایي
۱۱ چه اورشلیم به دَ آشور بادشاه لاس ته ورکړي نه شي ۱۱ تا به
آوریدلي وي هغه څه چه بادشاهانو دَ آشور په ټولي زمکي کښ
۱۲ دَ حرامولو دَپارَ څه وکړل نو کنږه ته به خلاص شي څه ۱۲ دَ قومونو
خدایانو هغو لره چه څموږ پلرونو هلاک کړل خلاص کړل څه؟ جوزان
۱۳ او حاران او رصف او بني عدن چه په تلسّار کښ دي ۱۳ دَ حمات
بادشاه چرته دَي او دَ ارفاد بادشاه او دَ سفروایم دَ ښهر بادشاه
۱۴ او دَ هینع او دَ عوّا ۱۴ نو حزقیاه کاغذونه دَ ایلچیانو له لاس نه
واخستل او و ئې لوستل بیا حزقیاه دَ خداوند کور ته وخوت او
۱۵ دَ خداوند دوړاندِ ئې وغوړول ۱۵ او حزقیاه خداوند ته دعا وکړه و ئې ویل
۱۶ ۱۶ چه دَ لښکرو خداوندَ دَ اسرائیل الله چه پاس په کروبیانو ناست
یې ته هغه یواځي الله دَ ټولو بادشاهتونو دَ زمکي یې تا آسمانونه
۱۷ او زمکه جوړ کړل ۱۷ خپل غوږونه راته کیږده اي خداوندَ او واوره
خپلي سترګي پرانزه اي خداوندَ وګوره او ټوله خبره دَ سنحریب واوره
۱۸ چه ئې راستولي ده چه ژوندي الله ملامتوي ۱۸ اي خداوندَ حق دَي

١٩ چه بادشاهانو دَ آشور ټول امتونه او دَ دوي زمکه خراب کړل ١٩ او
دَ دوي خدايان ئي اور ته واچول ځکه چه دوي خدايان نه وُو بلکه
کاريګري دَ لاسونو دَ سړو لرګي او کاڼړي ځکه ئي دوي نابود کړل
٢٠ ٢٠ او اوس اي خداوندَ خمونږ الله ته مو دده له لاسَ خلاص کړه
نو به دَ زمکي ټول بادشاهتونه زده کړي چه ته په يقين سره يواځي
خداوند يي
٢١ ٢١ نو اشعياه ځوي دَ آموص حزقياه ته (خبر) واستاوه و ئي
ويل چه خداوند دَ اسرائيل الله داسي واي هغه چه تا ده ته دَ
٢٢ سناخريب بادشاه دَ آشور په باب دعا وکړه ٢٢ دا هغه کلام دَي چه
خداوند پري خبره وکړه دَ صيحون پيغلي لور ستا سپکه وکړه په تا
٢٣ ئي ټوقي وکړي دَ اورشلم لور تا ته سر خوځولي دي ٢٣ تا دَ چا
ملامتيا کړي ده او کفران دِ کړي دي او په چا دِ آواز خپل پورته
کړي دَي او تا خپلي سترګي بلندي ته پورته کړي دِي په قدّوس
٢٤ دَ اسرائيل ٢٤ تا دَ خپلو غلامانو په لاس دَ خاوند ملامتيا کړي ده
او ويلي دِ دِي چه زه په کثرت دَ کاډيو و بلندي دَ غرونو ته وختلم
نهايت دَ لبنان ته او دَ هغه اوږده نښتر به پريکړم او غوري غوري
سروي او دَ هغه تر آخري بلندي ته او دده دَ کرمل وځنګل ته به
٢٥ ننوزم ٢٥ ما وکنودل او دَ هغو اوبه مِ وڅښلي او زه به دَ خپلو پښو
٢٦ په تلو ټول نږيونه دَ مصر وچ کړم ٢٦ تا نه دِي اوريدلي خه چه
ما له لري مدي نه کړي دي له وړاندينو ورځو نه مِ مصوّر کړي دي
اوس په دغه راغلم نو ته به دَ مضبوطو ښهرونو دَ خرابولو دَ پارَ
٢٧ (مقرّر) شي څو چه ته دَ خرابي صربي شي ٢٧ نو دَ هغه کوتاه دستي
ساکنان ويريدل او شرمنده شول دَ ښتي دَ واښو په شان شول
او لکه شنه زرغونګي لکه واښه دَ بامونو او لکه په کرمي سوي
٢٨ وړاندِ له لويدلو نه ٢٨ ليکن زه ستا په کښيناستلو او ستا په وتلو

او ستا په نوتلو او ستا په جوش چه په ما باندِ دي عالم یم ۲۹ ځکه ۲۹
چه ستا جوش په ما باندِ او ستا مغروري خما غوږونو ته وختل
زه به خپله ناتهٔ ستا په پوزي کښ او خپله ولونه ستا په شونډو
کښ کیږدم او په هغي لاري به دِ وجارباسم چه پرِ راغلي يي ۳۰ اوس ۳۰
تا لره دا نښه ده چه تاسي به په دي کال کښ په خپله زرغونه شوي
خورئ او په دویم کال دویم بر او په دریم کال به کرئ او لو کوئ او
انګور به نال کوئ او میوي به ئي خورئ ۳۱ او دَ یهودا له کورنه هغه ۳۱
بچ شوي چه باقي دي بیا به دَ لاندي بیخ ونیسي او پاس به میوه
وکړي ۳۲ ځکه چه له اورشلیم ته به باقي راووزي او بچ شوي دَ صیحون ۳۲
له غره نه دَ لښکرو دَ خداوند غیرت به دا وکړي ۳۳ دي دَپارَ خداوند ۳۳
دَ آشور دَ بادشاه په باب داسي وايي چه دي ښهر ته به نه ننوزي
او نه به هلته غشي وولي نه په ډال سره ورورانديِ شي او نه به په
هغه مورچه وډروي ۳۴ هم په هغي لاري چه پري راغلي دي پسته به ۳۴
وګرزي او دي ښهر ته به نه ننوزي ۳۵ او زه به دَدي ښهر ساتنه ۳۵
وکړم چه خلاص ئي کړم دَ خپل ځان دَپارَ او دَپارَ دَ داؤد بنده خما
۳۶ نو فرښته دَ خداوند ووتله او له لښکر دَ آشور نه ئي یو سل پنځه ۳۶
اتیا زره سړي ووهل او چه صبا وقتي پورته شول ګوره چه ټولي
جثني مړي وي ۳۷ نو ښناخریب بادشاه دَ آشور وګرزیده او جاروتونکي ۳۷
لاړ شه او په نینوي کښ مقیم شه ۳۸ او چه دَي دِ نسروخ دَده ۳۸
دَ خداي په کور کښ سجده کونکي وُه نو ادرملک او شراځر چه دده زامن
وُو په توري ئي وواهه او دَ آراراط زمکي ته وتښتیدل او آسرحدون
دَده زوي دده په عوض بادشاه شه *

## اته دیرشم باب

آ په دغو ورځو کښ حزقیاه مرګ لره رنځور شه نو اشعیاه نبي زوي ۱
دَ آموص ورغي او ور ته ئي ووېل خداوند داسي وايي چه خپل کور

۲ ته وصیت وکړه ځکه چه ته به مړ شي او نه به وبائیږي ۲ نو خزقیاه
۳ خپل مخ ودیوال ته کړ اوخداوند ته ئي دعا وکړه ۳ او وئي ویل
آه اي خداوندَ یاد کړه که نه چه زه ځرنګ ستا دَ وړاندِ په امانتداري
او په سلامت زړه سره وچلیدلم او چه ستا په سترګو کښ نیک وه
ومِ کړ او خزقیاه په لوي ژړا سره وژړل
۴ ۵ ۴ نو دَ خداوند قول اشعیاه ته وبونکي شه ۵ چه لاړ شه
اوخزقیاه ته ووایه چه خداوند الله دَ داؤد پلار ستا داسي وایي
چه ما دعا ستا واوریدله ستا اوښکي مِ ولیدي ګوره زه به ستا په
۶ ورځو پنځلس کاله نور زیاته کړم ۶ او زه به تا او دا ښهر دَ آشور دَ
۷ بادشاه له لاس نه خلاص کړم او دَدي ښهر ساتنه به وکړم ۷ او دَ
خداوند له طرف به تا له دا نښه وي چه خداوند به دا کار چه خبره
۸ ئي پري کړي ده پوره کړي ۸ ګوره زه به دَ هغو درجو سوري چه دَ
آحاز په درجو کښ دَ نمر سره کوز شه لس درجي به ئي په وروستو
را وچارباسم نو نمر لس درجي په هغو درجو کښ چه پرکوز شوي وه را وچاروت
۹ ۹ خط دَ خزقیاه بادشاه دَ یهودا چه دي رنځور او له رنځورتیا
ئي شفا وموندله
۱۰ ۱۰ ما دَ خپلو ورځو په غرمه کښ وویل چه زه به دَ دوزخ
دروازو ته ورشم
ځما باقي کالونه ورک شول
۱۱ ۱۱ ما وویل چه زه به خداوند نه وینم
خداوند دَ ژوندو په زمکه کښ دَي زه به بیا انسان له فاني
اوسیدونکو سره ونه وینم
۱۲ ۱۲ ځما مسکن وکښلي شه او دَ شپانه دَ کیږدي په دود
را نه لاړ شه
ما خپل ژوند لکه حولا ونغښت له رچ نه مِ پریکوي

ورځ او شپه مِ فنا کوِي
۱۳ ما تر صباح پورې تسلّي کوله هغه لکه زمري ځما ټول ۱۳
هډونه ماتوِي
ورځ او شپه مِ فنا کوِي
۱۴ لکه تغېدونکي ابابيل هسې آواز کوم دَ کوترې په دود غمېږم ۱۴
و بلندي ته کتونکي سترګي مِ ضعيفي شوي
اي خداوندَ زه تنګ شولم ته مِ ضامن شه
۱۵ زه څه خبره وکړم ده راته ووَيل او ده هغه کړي دِي ۱۵
ځما دَ ځان دَ تلخي په سبب ټول کالونه مِ درنګ کونکي دِي
۱۶ اي خاوندَ په دغو ژوندون لري او په دغو ټول ژوندون ۱۶
دَ روح مِ دي
ته شفا راکوِي او ته مِ ژوندي لرې
۱۷ ګوره دَ سلامتي دَپارَ ما ته تلخي ډېره وَه ۱۷
او تا ځما ځان دَ هلاکت له لوړو ژورو خلاص کړ
چه تا ځما ټولي خطاوي دَ خپلي شا دَ وَرُوستو وغورزولي
۱۸ ځکه چه دوزخ ستا حمد کولي نه شِي مرګ ستا ثنا کولي نه شِي ۱۸
هغه چه کوهي ته کوزېدونکي دِي ستا دَ امانداري اميد
لرلي نه شي
۱۹ ژوندِي چه دِي ژوندِي دغه به ستا حمد وکړِي لکه زه نن ۱۹
ورځ کوم
پلار به زامنو ته ستا امانداري وښيِي
۲۰ خداوند ځما دَ خلاصولو دَپارَ ۲۰
موږ به په خپل تارونو سره
ټولي ورځي دَ ژواندانه خپل دَ خداوند په کور کښ سرود کوو
۲۱ او اشعياه ويلي وه چه دَ انځير ټکۍ دِ واخلي او په داني ۲۱

۲۲ دِ کیږدِي نوجوړ به شِي ۲۲ او حزقیاه هم ویلي وه چه څه نښه دَه
چه زه دَ خداوند کور ته وخیژم +

## نه دېرشم باب

۱ آ په دغه وقت کښ مردوخ بَلَدان زوي دَ بَلَدان بادشاه دَ بابل
حزقیاه ته کاغذونه او پیښکښي واستول ځکه چه ده آوریدلي وه
۲ چه دي رنځور شوي وه بیا جوړ شه ۲ نو په دغو حزقیاه خوشحال شه
او هغو ته ئې دَ خزانو کور سپین زر او سرو زر او خوشبوئي او
خوشبوي تیل او ټول کور دَ وسیلي ځپلي او هر څه چه دَده په
خزانو کښ وموندلي شول ورښکاره کړل او هیڅ شئ دده. په کور
او په ټولي بادشاهي کښ نه وه چه حزقیاه هاغته ورښکاره نه کړه
۳ ۳ نو اشعیاه نبي حزقیاه بادشاه ته ورغي او ورته ئې وویل چه
دي سړو څه ویل او له کومه درته راغلي دِي حزقیاه وویل چه
۴ له لري زمکي راغلي دِي له بابل نه ۴ ده وویل چه ستا په کور کښ
څه ولیدل نو حزقیاه وویل چه هر څه چه ځما په کور کښ وو
وئې لیدل ځما په خزانو کښ هیڅ شي نشته چه ورته مِ ښکاره کړي
۵ نه دي ۵ نو اشعیاه حزقیاه ته وویل چه دَ لښکرو دَخداوند قول
۶ واوره ۶ کوره ورځي راځي چه په کښ به هر هغه څه چه ستا به
کور کښ دِي او هغه څه چه ستا پلرونو تر نن ورځي خزانه کړي
دِي بابل ته به ئې یوړلي شِي هیڅ شي به پاتي نه شِي خداوند
۷ وایِي ۷ او له هغو زامنو ستا چه له تا نه وزي هغوي چه ته ئې
وزیږوي وبه ئې نیسي او دَ بابل دَ بادشاه په محل کښ به خواجه سراي
۸ وِي ۸ نو حزقیاه اشعیاه ته وویل چه هغه قول دَخداوند چه تا پرِ خبره کړي
ده ښه دي او وئې ویل چه ځما په ورځو کښ به سلامتي او آمان وِي +

## څلویښتم باب

۱ ۲ ۱ ځما خلقو ته تسلي تسلّي ورکړئ ستاسو اللّٰه وایِي ۲ دَ اورشلیم زړه خوښ

کانړيِ او ناره ور وکړئ څکه چه جنګ دَدي پوره شه او بدِي ئي
ورته عفوه شوه دي دَ خداوند له لاسَ دوه کونه بدله دَ هري خطا
دپارَ بیاموندَه
٣ ٣ په بيابان کښ دَ ناري وهونکي آواز دَي چه دَ خداوند
لاري نياري کړيِ په صحرا کښ څمونږ دَ الله دپارَ يو سړک راست
٤ کړئ ٤ هره کنده به اوچته کړي شي او هر غر او غونډئ به ټيټه
٥ کړي شي او کوږ به سم شي او تنګ څوړونه به آسان شي ٥ نو
جلال دَ الله به ښکاره شي او ټول واړه بشر به ئي ويني څکه
چه دَ خداوند خوله خبره کړي ده
٦ ٦ دَ ويونکي آواز نداکوي نو وئي ويل چه زه څه دَپارَ
نداکوم ټولي جُسي واښه دِي او ټول ښائست ئي لکه غنچي دَ ټيي
٧ ٧ واښه وچيږي او غنچي مړاوي کيږي څکه چه دم دَ خداوند ورباندِ
٨ الوزيِ په حق سره خلق چه دِي واښه دِي ٨ واښه وچيږي غنچي
مړاوي کيږي ليکن څمونږ دَ الله کلام به تر ابده پوري ثابت پاتي شي
٩ ٩ په لوړ غره باندِ وخيژه اي زيري کونکي دَ صيحونَ خپل
آواز په قوّت سره پورته کړه اي زيري کونکي دَ اورشليم پورته
١٠ ئي کړه مه ويريږه دَ يهوداَ ښهرونوته ووايه ګوره ستا الله ١٠ ګوره
خاوند يهوه په قوّت سره راځي او دده بازو ده لره بادشاهي کوي
ګوره دده اجرت دده سره دَي او دده کارداران دَده دَ وړاندي دِي
١١ ١١ لکه شپون کِنهک خپل به وڅروي په خپل بازو به ګډوري راټول
کړي او په خپلي غيږي کښ به ئي واخلي او پئ ورکوونکي به ورو ورو
بيايي
١٢ ١٢ چا په خپل ورغوي اوبه پيمانه کړي دي او آسمانونه ئي
په لويشت کچلي دي او په پيمانه ئي دَ زمکي خاوري پيمانه کړي دي
١٣ او غرونه ئي په ترک تللي دِي او غونډئ په تله ١٣ چا دَ خداوند

روح انداز کړي دي ځوک دده وزیر شوي ورزده کړي دي له چا
سره ئې مصلحت کړي دي او دي ئې پوه کړي دي او په حقې لارې ئې
عالم کړي دي او معرفت ئې ور زده کړي دي او دَ فهم لار ئې ورزده
۱۵ کړي ده ۱۵ گوره قومونه لکه څاڅکي دَ بوکي او لکه گرد دَ تلې گنړلي شي
۱۶ گوره جزیرې دَ زرې په شان پورته کوي ۱۶ او لبنان دَ بالن دَپارَ
بس نه دي او دَده ځناور دَ سوزونکي قرباني دَپارَ بس نه دي
۱۷ ۱۷ ټول قومونه دَده دَ وړاندِ لکه نه شي هسې دي دده په نزد
۱۸ له نیستي او له بطلان کم گنړلي شي ۱۸ الله به په چا مشابه کړئ
۱۹ او کومه شبیه به له ده سره برابره کړئ ۱۹ بُت چه دي کاریگر ئې
ویلي کوي او زرگر ئې په زرو جړاؤ کوي دَ سپینو زرو زنځیرونه سره
۲۰ جوړوي ۲۰ هغه چه له نذر وړاندِ کولو بېوسه وي نو داسې لرگي
وآنړوي چه نه وراسته کیږي نو ماهر کاریگر را وغواړي چه داسې
۲۱ بُت ودروي چه نه خوځیږي ۲۱ تاسې پوهیدلئ نه یي تاسې اوریدلي
نه دي تاسې له ابتدا نه خبر شوي نه یئ څه تاسې له بنیادونو دَ
۲۲ زمکي ونه پوهیدلئ څه ۲۲ هغه چه دَ زمکي په کړي ناست دي او
دَدې اوسیدونکي لکه ملخان دي هغه چه آسمانونه دَ پردې په
۲۳ شان غوړوي او لکه کیږدئ دَ اوسیدلو دَپارَ ئې غوړوي ۲۳ هغه
چه غټان ناڅیز گرزوي او دَ زمکي قاضیان به دَ باطل په شان
۲۴ جوړوي ۲۴ هغوي لگولي شوي نه وي بلکه کرلي شوي نه وي او ددوي
تنې په زمکه کښې بیخ نیولي نه وي نو ده پرې ورپو کړي او هغه
۲۵ وچ شي او بربوکئ ئې لکه خس یوسي ۲۵ تاسې به ما له چا سره
۲۶ مشابه کړئ چه زه به ورسره برابر شم قدوس وائي ۲۶ خپلې
سترگي بلندې ته پورته کړئ وگورئ چه دا چا پیدا کړي دي هغه
چا نه راوزي چه په شمار سره دَ هغه لښکر ټول په نومونو بولي
دَ ډیر قوت په سبب او چه سخت قدرتناک دي یو ورک کیدلي نه شي

۲۷ ته ولي وايي اي يعقوبه او خبري کوي اي اسرائيلَ چه ځما ۲۷
لار له خداوند نه پټه ده او ځما دَ الله انصاف فوت شه ۲۸ تا ۲۸
ويږاندلي نه دي څه يا تا اوريدلي نه دي څه ابدي الله خداوند
خالق دَ اطرافو دَ زمکي نه ستړي کيږي او نه مانده کيږي دده
دَ فهم تفحص نشته ۲۹ ستړي ته قدرت ورکوي اوچه قوّت نه لري ۲۹
زور ئي ډيروي ۳۰ ځوانان ستړي کيږي او مانده به شي او ځوانان په ۳۰
نيمنډک سره تېبندک خوري ۳۱ ليکن دَ خداوند انتظار کونکي چه دي ۳۱
قوّت به نوي کړي لکه تجيران وزر به پورته کړي منډي به وهي او
نه به مانده کيږي او تلل به کوي او نه به ستړي کيږي ✣

# يوڅلويښتم باب

۱ اي جزيرو ما ته چپ اوسئ او خيلونه دِ قوّت نوي کړي نژدي دِ ۱
شي بيا دِ خبره وکړي موږ دِ سره انصاف ته ورشو ۲ چا دَ مشرق ۲
له لوري يو ودراوه چه دده دَ پښو څخه صداقت مليا کيږي دده دَ
وړاندِ ئي قومونه ورکړل او په بادشاهانو ئي مسلّط کړ هغوي ئي
په خپلي توري لکه خاوري او په خپلي ليندي لکه الوتونکي خس وکړزول
۳ ده هغوي وشړل په هغي لاري چه په خپلو پښو پري تللي نه وُه ۳
سلامت تير شه ۴ چا وکړ او پوره ئي کړ بلونکي دَ پيړيو له ابتدانه ۴
زه خداوند اوّل يم او له وروستنيو سره هم هغه يم ۵ جزيرو وليدل ۵
نو وويريدلي دَ زمکي طرفونه و لړزيدل هغه نژدي شوه او راغله ۶ هر ۶
سړي دَ خپل ملګري کومک وکړ او خپل ورور ته ئي وويل چه تکړه شه
۷ نو ترکانړ زرګر تکړه کړ هغه چه په ښتک صافونکي دي په سندان ۷
وهونکي ته وايي چه دغه له پيوند کولو ښه دي او هغه ئي په ميخونو
ټينګ کړ چه ونه خوځيږي
۸ او ته چه يي اي اسرائيلَ ځما بنده اي هغه يعقوبه چه ۸
تا ته مِ دَ ابراهيم خليل خپل نسل پسند کړي دي ۹ ته چه دَ دنيا له ۹

اطرافو مِ رانیولي يي او دَ هغي له قطرونو مِ را وبللي او تا ته مِ ووېل
چه ته څما بنده يي ته مِ پسند کړي يي او وغورزولي مِ نه يي
۱۰ ۱۰ ته مه وېرېږه ځکه چه زه له تا سره يم ته مه ترسېږه ځکه چه زه
ستا الله يم ما مدد درکړي دي او کومک مِ دِ کړي دي او دَ
۱۱ خپل صداقت په ښي لاس مِ محکم کړي يي ۱۱ ټول غصّه کېدونکي په
تا به پښيمانه او شرمنده شِي او چه له تا سره دښمني کوِي به
۱۲ لکه ناڅيز شِي او هلاک به شِي ۱۲ ته به ستا جګړېدونکي ولټوِي
او نه به ئې مومي ستا جنګېدونکي به لکه ناڅيز او لکه نابود شِي-
۱۳ ۱۳ ځکه چه خداوند ستا الله ستا ښي لاس به ونِسم چه تا ته
۱۴ واېي چه مه وېرېږه زه به دِ کومک وکړم ۱۴ مه وېرېږه اي چنجيه
يعقوبه اي دَ اسرائيل سړيو زه به ستا مدد وکړم خداوند واېي
۱۵ او قدّوس دَ اسرائيل ستا فديا دي ۱۵ ګوره ما تا ته يو تېز او نوَي
غاښوره ځپر درکړه ته به غرونه وټکوي او مېده به ئې کړي او غونډئ
۱۶ به لکه پروړه کړي ۱۶ باد به ئې کړي نو باد به ئې يوسي او سيلئ به ئې
نابود کړي او ته به په خداوند خوښي وکړي دَ اسرائيل په قدّوس به
۱۷ فخر وکړي ۱۷ محتاجان او مسکينان دَ اوبو طلبګار دي او نشته ژبي
ئې له تندي وچي شوي زه خداوند ذوي ته ځواب ورکوم زه الله دَ
۱۸ اسرائيل ترک به ئې نه کړم ۱۸ زه به په لغړو غوندو رودونه پرانزم
او په مېنځ دَ کندو کښې چينې صحرا به دَ اوبو ډنډونه او وچه زمکه
۱۹ دَ اوبو کاريزونه ۱۹ په وچه کښې به ښښتر او کيکر او اوبښته او دَ
زيتون ونه لګوم او په بيابان کښې به سرو او صنوبر او شيروسرو
۲۰ ولګوم ۲۰ تا چه دوي وګوري او وپېژني او آګاه شِي او سره فکر وکړي
چه دا دَ خداوند لاس کړي دي او قدوس دَ اسرائيل پيدا کړي دي
۲۱ ۲۱ خپلي دعوي پېښي کړئ خداوند واېي خپل حجّتونه حاضر
۲۲ کړئ دَ يعقوب بادشاه واېي ۲۲ تا چه دوی دِ ئې پېش کړي او موږ

دِ په هغو چه د به شِي خبر کړِي چه ورڅښي څه دِي خبر دِ وکړِي
چه مونږ به خپل زړونه پري متوجّه کړو او دَ هغو انجام به وپيژنو
۲۳ يادِ مونږ په آينده ؤ خبر کړِي ۲۳ په هغو چه په پس (زماني) کښ
رانلونکي دِي خبر وکړِيْ چه پوه شو چه تاسي خدايان يئِ هو ښه يا
۲۴ بدخو وکړِئِ نو مونږ به تا ته متوجّه شو او سره به وګورو ۲۴ ګورئِ
تاسي له ناڅيزه يئِ او ستاسي کار له نيستي نه هغه چه تاسي
پسند کوئِ زښت دي
۲۵ ۲۵ ما هغه دَ شمال له لورِي درولِي دي رابه شِي دَ نمرخاته
نه به هغه څما په نوم دُعا وکړِي به سردارانو به داسي راشِي لکه
۲۶ په خټه او لکه کُلال چه خټه پايمالوِي ۲۶ له ابتدا نه داخبرچا کړِي
دَي تاچه مونږ ئِ وپيژنو او له وړاندِ نه تاچه مونږ ووايُو چه
هغه صادق دي هو نه ستاسو دَ خبرو خبرونکي هو نه اورونکي هو
۲۷ نه آوريدونکي شته ۲۷ زه به وړښي صيحون ته ووايم ګورئِ ګورئِ
۲۸ هغوي او اورشليم ته به يو زيري ورکوونکي ورکړم ۲۸ او ما وکتل
چه سړِي نشته او له دغو نه يو مشير نه وه تاچه زه ور نه پوښتنه
۲۹ وکړم او دوي يوه خبره را وګرزوِي ۲۹ ګورئِ هغوي ټول باطل دِي
او کارونه ئِ نابود دِي او دَدوي ويلِي شوِي بتان باد او ويراني دِي +

# دوڅلوېښتم باب

۱ ۱ ګورئِ څما بنده هغه چه زه ئِ محکم کوم څما پسنديده هغه
۲ چه ځان څما پري خوښ دي ۲ ما خپل روح ورباندِ کيښود نو به
قومونو ته انصاف وروباسِي نه به نارِي وهي او نه به ئِ پورته
۳ کوِي او په سړکونو کښ به خپل آواز نه آوروِي ۳ چنيلِئ درمه
به ماته نه کړِي او مړاوه ډيوه به مړه نه کړِي امان نه به انصاف
۴ وباسِي ۴ نه به مانده شِي او نه به مات شِي څوچه انصاف په
۵ زمکه کښ کيږدِي او جزيرِي به دَده دَ شريعت انتظار وکړِي ۵ داسي

واېي الله خداوند پيدا کوونکي دَ آسمانونو او غوړوونکي دَ هغو وېړوونکي
دَ زمکي او دَ دي دَ پيداوارو هغو خلقو ته چه ورباندِ دي ساورکوونکي
۶ دي او په دي کښ اوسيدونکو ته روح ۶ ما خداوند ته په صداقت
سره راوبللي يي زه به دِ تر لاس ونيسم او و به دِ ساتم او تا به
۷ خلقو ته عهد او امتونو ته نور وګرزوم ۷ تاچه ته دَ ړندو سترګي
پرانزي او چه بنديان له زندان راوباسي هغه چه په تياري کښ
۸ کښيناستونکي دِي له بنديخانې نه ۸ زه خداوند يم دا مِې نوم دَې او
۹ خپل جلال به بل ته ور نه کړم او نه خپله ثنا تراشلو ته ۹ ګوره
ورښتني خو راغلل او په نوېو به مو زه خبر کړم له زرغونيدلو به دراندِ
۱۰ درنه واوروم ۱۰ خداوند ته په نوي غزل سره غزل ووايئ دَده حمد
دَ زمکي له نهايت نه اي دَ درياب کوزيدونکو او دَده ډکوالو او جزيرو
۱۱ او دَدغو اوسيدونکو ۱۱ بيابان او ښهرونه دَ هغې دِ خپل آواز پورته
کړي هغه ديار چه اوسيدونکي ئي قيدار دي اوسيدونکي دَ سالع
۱۲ دِ ښرود وغږوِي دَ غرونو له سرونو دِ غوږِ وکړي ۱۲ خداوند ته
۱۳ دِ جلال ورکړي او په جزيرو کښ دِ دَده دَ ثنا خبر وکړي ۱۳ خداوند
به لکه يو جبّار راووزي لکه دَ جنګونو سړي خپل غيرت به
وخوځوي غوريږ به وکړي او لوي ناره به وکړي او په خپلو دښمنانو
۱۴ به غلبه وکړي ۱۴ زه له ډيري مُدي نه چپ وم سکوت او خاموشي
مِې وکړه لکه زيږوونکي ناره به وکړم او اسويلي به سره وکړم -
۱۵ ۱۵ زه به غرونه او غونډئ خراب کړم او ټول واښه به ئي وچ کړم
۱۶ او رودونه به خشک وګرزوم او ډنډونه به وچ کړم ۱۶ او ړانده
به په هغي لاري چه نه ئي پېژنِي روان کړم په هغو پيندونو چه
ورنه آګاه نه دي بو به ئي زم دَدوي دَ وړاندِ به تاريکي رڼا وګرزوم
۱۷ او کږي سمي دا کارونه به وکړم او پري به ئي نږدم ۱۷ دوي په ورستو
وګرزولي شي هغوي چه په تراشلو توکّل کوونکي دِي چه ويلو کړيو

ته واېي چه تاسي زمونږ خدايان يئ په پښېمانۍ سره پښېمانه شي
۱۸ اي کڼو واورئ اي ړندو وګورئ چه ووينئ ۱۹ څوک ړوند ۱۸ ۱۹
دي مګر زما بنده او کوڼ لکه زما رسول چه ئې استوم څوک ړوند
دي لکه کامل او ړوند لکه بنده. د خداوند ۲۰ ډېر کتونکي او ملاحظه ۲۰
نه کوي کشاده غوږونه او نه اوري ۲۱ خداوند د خپل صداقت په ۲۱
سبب خوښ شه شريعت به عظيم کړي او عزتدار به ئې کړي -
۲۲ ليکن دغه يو لوټ شوي او شوکيدلي ټولي دي چه ټول په ږوغلي ۲۲
کښ ښکار شول او په بنديخانو کښ پټ شول دوي لوټ شول او
خلاصونکي نه لري او ښوک شول او هغه څوک نشته چه وواېي را
وئې ګرزوئ ۲۳ له تاسي نه څوک دي چه دا واوري او آينده ته غوږ ۲۳
ونيسي وائې وري ۲۴ چا يعقوب ښوک ته ورکړ او اسرائيل لوټيرو ۲۴
ته هغه خداوند نشته څه چه مونږ دده خطا وکړه او دوي ونه
غوښتل چه دده په لارو لاړ شي او دده شريعت ئې وا نه وريده
۲۵ نو ده ورباندې کړي د غضب خپل او سختي د جنګ توي کړل نو ۲۵
دوي له ټولو طرفونو بل شول او وئې نه پيژاند او وئې سوزاوه
او په خپل زړه کښ کښېي نه ښود *

## دري څلوېښتم باب

۱ او اوس ستا خداوند ستا خالق اي يعقوب او ستا جوړونکي اي ۱
اسرائيل داسي واېي چه ته مه ويرېږه ځکه چه په فديي سره م
خلاص کړي ته م ستا په نامه را وبللي ته زما يي ۲ هرکله چه ته ۲
په اوبو کښ تيرېږي نو زه به له تا سره يم او په رودونو کښ نو
ډوب به د نه کړي اوچه ته په اور کښ ځي نو و به د نه سوزي
او لمبه به د ونه اليسي ۳ ځکه چه زه خداوند ستا الله د اسرائيل ۳
قدوس ستا خلاصونکي يم ما مصر ستا فديه کړ کوش او سبا
ستا عوض ۴ هرکله چه ته زما په سترګو کښ عزيز او مکرم شوي ۴

یي او ما محبّت درسره کړي دي نو سړي به ستا او ټولي ستا دځان په عوض ورکړم
۵ ۵ نه مه ویریږه ځکه زه له تا سره یم ستا اولاد به له مشرق
۶ نه راولم او له مغرب نه به یئ راټول کړم ۶ زه به شمال ته ووایم
چه راکړه او جنوب ته چه مه منع کوه ځما ځامن له لرې او ځما لوڼي
۷ دَ زمکي له انتها نه راوله ۷ هر یو چه ځما په نوم بللي شي او ما
دَ خپل جلال دپارَ پیدا کړي او ما جوړ کړي او ما ساز کړي دَي -
۸ ۸ رانده خلق راوباسه چه سترګي لري او کاڼه چه غوږونه یئ وي
۹ ۹ اي ټولو قومونو سره جمع شئ او قبیلي دِ ټولي شي له دوي نه
څوک دَي چه په دي به خبر ورکړي او مونږ ته وړښي واوروي
خپل شاهدان دِ پیش کړي چه صادق کړي شي او هغوي دِ واوري
۱۰ او ووایي چه رښتیا دي ۱۰ تاسو ځما شاهدان یئ خداوند وایي او هغه
ځما بنده چه ما خوښ کړي دي تاچه دوي وپیژنئ او په ما ایمان راوړئ
او وپوهیږئ چه زه هغه یم له ما نه وړاندِ هیڅ الله مصوّر شوي
۱۱ نه دي او پس له ما به نه وي ۱۱ زه هو زه یَهُوَه یم او بې له
۱۲ ما نه خلاصونکي نشته ۱۲ ما خبر کړي دَي او خلاص کړي مِ دي او
څرګند کړي مِ دَي او تاسو په مینځ کښ بیګانه نه وه له دي سببه
۱۳ تاسو مِ شاهدان یئ خداوند وایي او زه الله یم ۱۳ زه له ورځي
هم هغه یم ځما له لاس نه څوک خلاصونکي نشته زه کار کوم څوک
به یئ وګرزوي
۱۴ ۱۴ خداوند چه ستاسو فدیه او دَ اسرائیل قدّوس دَي
داسي وایي چه ما ستا دپارَ بابل ته واستاوه او ټولي جندري مِ
۱۵ کوزي کړي او کلدانیان دَ دوي دَ سرود کولو په جهازونو کښ ۱۵ زه
خداوند ستاسي قدّوس دَ اسرائیل خالق یم ستاسي بادشاه یم
۱۶ ۱۶ هغه خداوند چه په دریاب کښ لار او په ګنړو اوبو کښ کدرونه
۱۷ جوړوي داسي وایي ۱۷ چه هغه رایستونکي دَ ګاډیو او دَ آسونو

دَ لښکر اودَعزت هغوي سره به پریوزي پورته به نه شِي هغوي
وخمیدل لکه بتِيئِ مړه شول ۱۸ تاسو وړاندني څیزونه مه یادوئِ ۱۸
او په زړو فکر مه کوئِ ۱۹ گوریِ زه به یو نوي کار وکړم اوس به ۱۹
زرغون شِي تاسي به يې نه پېژنئِ څه زه به په وچه کښ لار او په
بیابان کښ رودونه جوړ کړم ۲۰ څما تمجید به دَ صحرا حیوانان شغالان ۲۰
او شترمرغان وکړي ځکه چه زه به په وچه کښ اوبه په بیابان کښ
رودونه جوړ کړم تا چه څما غوره خلق اوبه کړم ۲۱ دا خلق چه مِ ۲۱
دَ ځان دَپارَ پیدا کړل تاچه څما په ثنا به خبري کړي ۲۲ او تا زه نه ۲۲
و بللم ای یعقوبه تاچه څما دَپارَ ای اسرائیلَ ستړي شوي وي
۲۳ تا ما ته ستا دَ سیزونکي قرباني دَپارَ گډوري حاضر نه کړ ۲۳
او په خپلو ذبحو دِ څما تعظیم و نه کړ ما له تا نه دَ پیښکښي خدمت
طلب نه کړ او په لوبانو مِ ستړي نه کړي ۲۴ تا څما دَپارَ په سپینو ۲۴
زرو کانه وا نه خستله اودَ خپلو ذبحو په وازگو دِ ډک نه کړم
لېکن تا له ما ته په سبب دَ خپلو خطاؤ خدمت طلب او په خپلو
بدیو دِ ستړي کړم ۲۵ زه هو زه هغه یم چه ستا گناهونه دَ خپل ۲۵
ځان دَپارَ لږي کوم او ستا خطا په یاد نه راوړم ۲۶ ما ته را په یاد ۲۶
کړه چه بحث سره وکړو ولیکه چه ته صادق شي ۲۷ ستا پلار اوّل ۲۷
خطا وکړه او ستا میانځگړو را نه گناه وکړه ۲۸ نو زه به دَ مقدّس ۲۸
سرداران پلیت وکړم او یعقوب به لعنت ته ورکړم او اسرائیل بشکنځلو ته

## څلور څلویښتم باب

۱ او اوس واوره ای یعقوبه څما بنده او اسرائیلَ چه ته مِ خوښ ۱
کړي يې ۲ چه خداوند ستا صانع او له رحِم نه ستا جوړونکي ستا
مددگار داسي وايِي ۲ چه مه ویریږه ای څما بنده یعقوبه او ای ۲
یشورونه چه ته مِ خوښ کړي يې ۳ ځکه چه زه به په تږیو باندِ اوبه ۳
توي کړم او په وچو باندِ سیلونه ستا په اولاد به خپل روح توي

۴ کوم او ستا په زاهوزاد خپل برکت ۴ نو دوي به دَ وابنو په مینځ کښ
۵ دَ اوبو په لښتیو دَ ولي په شان وټوکیږي ۵ یو به وایي چه زه دَ خداوند
یم او بل به دَ یعقوب نوم په ځان ولګوي او دا به په خپل لاس
خداوند لره ولیکي او دَ اسرائیل په نوم به (ځان) نومري کړي
۶ ۶ داسي وایي هغه خداوند بادشاه دَ اسرائیل او ده خلاصونکي
خداوند دَ لښکرو چه زه اوّل او زه آخر یم او بي له ما نه بل
۷ الله نشته ۷ او څوک به څما په شان وبولي او دَ هغه خبر دِ وکړي
او ما ته دِ په ترتیب سره پیش کړي له هغي مُدي چه وړاندیني خلق
مِ کینبودل او آینده او هغه چه زر به راشي دوي دِ خبر وکړي -
۸ ۸ تاسي مه ویریږئ او ترس مه کوئ ما تا ته له قدیمَ نه دروښول
او پري خبر مِ نه کړي څه؟ نو تاسي څما شاهدان یئ بي له ما بل الله
۹ شته څه؟ هو بل کمر نشته زه ئي نه پیژنم ۹ هغوي چه بتان جوړوي
ټول باطل دي او دَ دوي پسندیده څیزونه به بي نفعي شي او شاهدان
۱۰ دَ دوي دغه چه نه ویني او نه پوهیږي څو چه پښیمانه شي ۱۰ چا الله
۱۱ جوړ کړي دي او بي نفعي بت ئي ساز کړي دَی ۱۱ ګوره ټول یاران
به ئي شرمنده شي کاریګر ئي له سړیو دي دوي ټول به جمع شي
۱۲ و به دریږي و به ویریږي او سره به پښیمانه شي ۱۲ لوهار تربنځ
سازوي او کار په سکرو کوي او په څټکونو ئي مصوّر کړي او
دَ خپل بازو په قوّت سره ئي جوړ کړي وږي هم شي بیا قوت نه اري
۱۳ او اوبه نه څښي نو مانده شي ۱۳ ترکاڼ مزي اوږد کړي او په
وني نښي پري کوي په تراشه ئي جوړوي او په پرکار نقش پریکوي نو
دَ سړي په شکل ئي جوړوي دَ سړي دَ ښایست په شان تاچه په
۱۴ کور کښ واوسي ۱۴ دَ ځان دپارَ نښتر پري کړي او څیړئ او بلوط
واخلي او دَ ځان دپارَ دَ ځنګل له ونو پسندي کړي صنوبر ولګوي
۱۵ او باران نو ورکوي کړي ۱۵ نو دَ سړو دپارَ خس شي او له هغه

يُ اخلِي او پري توديږي سيزي يُ هم او ډوډيُ پري پخوي بيا خداي
ورنه جوړ کړي او سجده ورته کوي هغه تراشلي بت جوړ کړي او
۱۶ ورته تيټ شِي ۱۶ نيم دَ هغه په اور و سيزي په نيمي يُ غوښي خوري
ورته يُ وريته کړي او موړ شِي توديږي هم او وايي واخ زه تود شوم
۱۷ اور مِ ليدلي دي ۱۷ او له باقي يُ خداي جوړ کړي يو بت دَ ځان دپارَ
هغه نه تيټ کيږي او سجده کوي او دعا ورته کوي او وايي چه ته
۱۸ نجات راکړه ځکه چه ته مِ الله يي ۱۸ دوي نه پيژني او نه پوهيږي ځکه
چه ددوي سترګي يُ له کتلو نه بندي کړي او زړونه يُ له تميز کولو
۱۹ ۱۹ او په خپل زړه کښ يُ نه ګرزوي او هغه نه معرفت او نه فهم
لري تاچه دي ووايي چه نيم خو مِ په اور وسيزه او دَ هغه په
انګارِ مِ ډوډيُ هم پخه کړه غوښه مِ وريته کړه او و مِ خوړه نو
ګنړه زه به له هغه باقي شوي نه يو نفرتي شيَ جوړ کړم څه او دَ
۲۰ وني ونګري ته به تيټ کيږم څه ۲۰ هغه ايري خوري تګلي زړه يُ
ګمراه کړي دي چه خپل ځان به بچ کولي نه شِي او نه وايي چه څما
په ښي لاس کښ دروغ نشته څه
۲۱ ۲۱ دا په ياد کړه اي يعقوبه اي اسرائيلَ ته خو څما بنده يي
نه مِ پيدا کړي ته مِ بنده يي اي اسرائيلَ ته دِ را نه هير نه شي
۲۲ ۲۲ ما ستا ګناهونه لکه اوريځه محوه کړي دِي او لکه لړه خطا ستا
۲۳ ما نه رجوع وکړه ځکه چه ما په فديه سره به خلاص کړي يي ۲۳ اي
آسمانونو سرود وغږوئِ ځکه چه خداوند کار کړي دي اي دَ زمکي
ژورو ناري وکړئِ اي غرونو اي ځنګلو او ټولوونو چه په هغو کښ
يُ په غزلو وچوي ځکه چه خداوند يعقوب په فديه سره خلاص کړي
ديَ او په اسرائيل کښ به تمجيد بياموي
۲۴ ۲۴ هغه خداوند چه ستا فديه ورکوونکي ديَ او له ګيډي
نه پيدا کوونکي ستا داسي وايي چه زه خداوند صانع دَ هر شيَ يم

۲۵ یواځي دَ آسمانونو غوړونکي یم ویړونکي دَ زمکي ۲۵ دَ ټګونکو دَ نښو
باطل کونکي او دَ فال بینانو احمق کونکي دَ حکیمانو راګرزونکي وروستوته
۲۶ او جاهل کونکي دَ معرفت ددویو ۲۶ مضبوط کونکي دَ خبري دَ بنده
خپل او پوره کونکي دَ فکر دَ رسولانو خپلو هغه چه دَ اورشلیم په
باب وایي چه ته به آباد شي او دَ یهودا ښهرونو ته چه دوي به
۲۷ جوړ شي او دده خرابه به آباده کړم ۲۷ هغه چه ژورو ته وایي
۲۸ چه زه به مو وچي کړم او ستا رودونه به خشک ۲۸ هغه چه دَ
کورش په باب وایي چه ته مِ شپون یي ټوله خوښي به مِ پوره کړي
او چه له اورشلیم نه وایي چه ته به بنا کړي شي او هیکل ته چه
ستا بنیاد به کښودلي شي +

## پنځه څلویښتم باب

۱ آ خداوند خپل مسیح ته هغه کورش ته چه ما تر ښي لاس ونیو
تاچه دَده دَ وړاندِ قومونه پایمال کړم او ملا دَ بادشاهانو به خلاصي
کړم او دَده دَ وړاندِ به ورونه پرانزم او دروازي به بندي نه شي
۲ ۲ زه به ستا دَ وړاندِ تلل کوم او کوږي به هوار کړم زه به دَ زیړو
۳ دروازي ټوټي کړم او اړمونه دَ اوسپني به مات کړم ۳ او زه
به تا ته دَ تیاري ذخیري او دَ پټو ځایونو خزاني درکړم تاچه وپیژني
چه زه هغه خداوند یم چه تا ستا په نوم بولي هم الله دَ
۴ اسرائیل ۴ دَ پاره دَ بنده خپل یعقوب او اسرائیل خوښ شوي ما
۵ نه ستا په نوم رابللي یي ما ته ملقب کړي او تا نه پیژندلم ۵ زه
یَهُوَه یم او بل نشته بي له ما نه الله نشته زه به ستا ملا وتړم
۶ اګر تا وپیژندلي نه یم ۶ تاچه هغوي له نمرخاته نه او دَ هغه
له مغربَ پوه شي چه بي له ما نه بل نشته زه خداوند یم او
۷ بل نشته ۷ سازونکي دَ نور او خالق د تیاري یم صانع دَ سلامتي
او پیدا کونکي دَ شر زه خداوند صانع دَدي ټولو یم

۸ ۸ اي آسمانونو له پاسَ را وڅاڅئ او هوا دِ صداقت راښکته
کړئ زمکه دِ پرانتلې شي او خلاصون دِ میوه‌دار شي او صداقت دِ
ورسره زرغون شي ما خداوند هغه پیدا کړل
۹ ۹ هَي په هغه چه له خپل پیداکونکي سره جګړه کوي کودري
دَ زمکي دَ کودرو په مینځ کښ ګنړه ختهٔ به خپل اغړونکي ته ووايي
۱۰ چه ته څه کوي او یا ستا کار ووايي چه ستا لاس نشته ۱۰ هَي په
هغو باندِ چه پلار ته ووايي چه څه لره زیږوي یا ښځي ته چه څه له
۱۱ زیږوي ۱۱ خداوند قدّوس دَ اسرائیل او دده پیداکونکي داسي وايي
چه له ما نه دَ آینده‌ؤ سوال وکړئ څما دَ زامنو له جهتَ او څما
۱۲ دَ لاسونو دَ عمل له جهتَ را نه پوښتنه وکړئ ۱۲ ما زمکه جوړه
کړي دَه او انسان مِ پري پیدا کړي دي ما هو څما لاسونو آسمانونه
۱۳ غوړولي دِي او په ټول لښکر دَ هغو ما حکم کړي دي ۱۳ ما هغه
په صدق سره پورته کړي دي او ټولي لاري دَده به آساني کړم هغه
به څما ښهر آباد کړي او هغه به څما بندیان آزاد کړي نه په روپیو
او نه په هدیي خداوند دَ لښکرو وايي
۱۴ ۱۴ خداوند داسي وايي چه تا ته به مشقّت دَ مصر او
سوداګري دَ کوش او دَ سبا قامتدار را ته راځي او ستا به شي ستا په
وروستو به ځي له زنځیرونو سره به تیریږي او تا ته به سجده کوي
تا ته به زاري کوي و به وايي چه په تا کښ بيشک الله دَي او بل
۱۵ نشته بل الله نشته ۱۵ په حق سره ته په حجاب کښ شوي الله يي
۱۶ اي دَ اسرائیل الله چه ته خلاصونکي يي ۱۶ هغوي به پښیمانه شي او
ټول سره به خجل شي له سرمندګي سره به لاړ شي چه کاريګر دَ
۱۷ بتانو دِي ۱۷ لیکن اسرائیل به په خداوند سره په ابدي خلاصي
خلاص شي ترابده به نه پښیمانه: نه شرمنده شي
۱۸ ۱۸ څکه چه خداوند خالق دَ آسمانونو داسي وايي هغه الله

چه سازكونكي دَ زمكي او صانع ئې دي ده قراره كړي ده او باطله
ئې پيدا كړي نه ده دَ اوسيدلو دَپارَ ئې جوړه كړي ده زه خداوند يم
۱۹ بل نشته ۱۹ ما په پټه سره دَ زمكي په تاريک ځاي كښ خبره كړي
نه ده ما دَ يعقوب اولاد ته باطل نه ويل چه په باطل سره ځما
طلب كوئ زه خداوند په صداقت سره خبري كوم او په راستي
سره خبر وركونكي يم
۲۰ ۲۰ اي بچ شوو دَ قومونو جمع شئ او راشئ او سره
راوراندِ شئ هغوي چه دَ خپلو بتانو دَ لرګي ورونكي دِي او هغه
۲۱ الله ته دُعا كونكي دِي چه خلاصولي ئې نشي نه پوهيږي ۲۱ خبر كوئ
نژدي ئې راورئ تاسي دِ يو ځاي سره مصلحت وكړئ چه له
وړاندِ زماني دغه چا معلوم كړي دي چا له زماني نه په دغه خبر
كړي دَي ما خداوند كړي نه دَي څه؟ او بي له ما نه بل الله نشته
۲۲ صادق او خلاصونكي الله بي له ما نه څوک نشته ۲۲ ما ته متوجّه
او خلاص شئ اي ټولو سرحدونو دَ زمكي ځكه چه زه الله يم او بل نشته
۲۳ ۲۳ ما په خپل ذات قسم وكړ ځما له خولي نه دَ صدق كلام ووت
و به نه ګرزي چه هر يو زنګون به ځما دَ وړاندِ ولګولي شي هره
۲۴ ژبه قسم خوري ۲۴ ما ته به ووايي چه په خداوند سره صداقت او
قوت دي ده ته به راشي او هغه ټول چه ورنه بيزار شول شرمنده
۲۵ به شي ۲۵ ټول اولاد دَ اسرائيل به په خداوند صادق ګڼلي
شي او فخر به كوي ❊

## شپږ څلويښتم باب

۱ ۱ بيل ټيټ شه نبو په نړيدلو شه دَ دي بتان په حيوانانو او په
چارپايانو بار شول بارونه ستاسو دَ ستړي دَ بار ليښلي شوي دِي
۲ ۲ هغوي ټيټيږي نه توانيږي چه بار خلاص كړي بلكه پخپله په
بند لاړ شه

۳ ځما واوره اي دَ يعقوب كوره او اي ټولو باقي پاتي شوو ۳
دَ اسرائيل دَكور چه له ګيډې نه په ما بانډې بار شوي يئ چه
له رحم نه بار شوي يئ ۴ او تر زړتوب پوري زه هغه يم او تر زړه ۴
بدي پوري به ئې زه وړم ما كړي دي او زه به پورته كوم او زه به
وړم او زه به خلاصوم ۵ له چا سره به مِ مشابه كړئ او برابر ۵
به مِ كړئ او دَ چا په مثل به مِ كړئ چه مونږ سره مشابه شو
۶ هغوي چه سره زر له هميانۍ نه خالي كوي او سپين زر په تلي ۶
تولوي زرګر نوكر كوي تاچه خداي جوړ كړي ورته ټيټ كيږي او
سجدي ورته كوي ۷ په اوږو ئي پورته كوي هغه يوسي او په خپل ۷
ځاي ږدي چه ولاړ اوسي له خپل ځاي نه نه خوځيږي كه څوك
ورناري كړ نو ځواب نه وركوي دَ هغه له سختي ئي خلاصولي نه شي
۸ دا ياد كړئ او سړي شئ اي نافرمانو په خپلو زړونو كښ ئي وګرزوئ ۸
۹ له مدي نه وړاندني څيزونه په ياد كړئ ځكه چه زه الله يم او بل نشته ۹
بل الله ځما په شان نشته ۱۰ چه له ابتدا نه دَ آخرينو خبر وركوي ۱۰
او له قديم نه دَ هغه (حال) وايي چه شوي نه وي ځما راي محكم
اوسي او زه به ټوله مرضي خپله كوم ۱۱ زه به له مشرق نه ښكير را ۱۱
وبولم له لري زمكي به ځما دَ مصلحت سړي ما خبر كړي دَه او زه
به ئي جاري كړم ما وفرمايل او زه به ئي وكړم ۱۲ اي سختدلانو ځما ۱۲
واورئ چه له صدق لري يئ ۱۳ ما خپل صدق نزدي كړ لري به ۱۳
نه شي او ځما خلاصون به درنګ ونه كړي او زه به اسرائيل
ته چه ځما جلال دي په صيحون كښ خلاصي وركړم ✣

## اوه څلويښتم باب

۱ راكوزه شه او په خاورو كښينه اي پيغلي لوري دَ بابل په زمكه ۱
بي كرسي كښينه اي دَ كلدانيانو لوري ځكه چه ته به بيا نازنينه
خوش اندامه ونه بللي شي ۲ ميچن واخله او دوړه وآزه پردَه ۲

۳ خپله لوڅه کړه لمن ووهه لېنګي لوڅ کړه له رودونو پورېوزه ۳ ستا
نهاني اندام به لوڅ کړي شي او ستا شرمګاه به وليدلي شي زه
۴ به بدله واخلم او له چا سره به صلحه ونه کړم ۴ څمونږ
۵ فديه ورکونکي يهوه د لښکرو دده نوم دَي قدوس د اسرائيل ۵ پټه
خوله کښېنه او په تياري کښ ننوزه اي د کلدانيانو لوري څکه
۶ چه ته به بيا د بادشاهتونو خاونده وبللي نه شي ۶ زه په خپل خلق
په غضب شولم خپل ميراث مِ پليت کړ او ستا لاس ته مِ درکړ
۷ تا په هغو رحم ونه کړ په زاړه دِ خپل نُغ بيحده بار کړ ۷ او وِدِ
ويل چه زه تر ابده پوري خاونده يم
۸ ۸ تا په خپل زړه کښ دانه کېښودل او نه دِ د هغه انجام
په ياد راوړه نو اوس دا واوره اي منعمي چه په قراري سره ناسته
يي او په خپل زړه کښ وايي چه زه يم او بي له ما بل څوک نشته
۹ زه به کونده نه کښېنم او زه به بي فرزنده ونه پېژنم ۹ نو په تا به
دغه دواړه په يوي ورځي کښ ناڅاپه راشي بي فرزندي او کونډوالي
سره له ډېرو سحرونو ستا سره له بي اندازه ډېري جادوګرۍ ستا
۱۰ به دا پوره پوره درباندِ راشي ۱۰ او تا په خپله بدِي اطمينان وکړ
تا ويل چه هيڅوک مِ نه ويني ستا حکمت او معرفت ته وغلولي
۱۱ په خپل زړه کښ دِ وويل چه زه يم او بل بي له ما نشته ۱۱ نو
په تا باندي به هسي بدي راشي چه ته به ئي صباح نه پېژني او
په تا به هسي مصيبت پرېوزي چه ته به نه توانيږي چه وئي ګرزوي
۱۲ او په تا به ناڅاپه هلاکت راشي چه ته به پرِ خبره نه شيَ ۱۲ ته
په خپل جادو او په کثرت د هغو سحرونو خپلو کښ چه له مُدي
د وړوکوالي دِ په کښ خواري کړي ده وګرزه کوندي چه ته و توانيږي
۱۳ چه فائده درکړي او کوندي چه ته وترسوي ۱۳ ته له خپلو ډېرو
مصلحتونو کمزوره شوي هغوي چه د آسمانونو ويشتونکي دي او

دَ ستورو څیرونکي دِي او چه دَ میاشتو په سرونو کښې خبرکونکي
دِي پورته دِ شِي او تا دِ له هغو چه دربانِدِ راتلونکي دِي خلاصه
۱۴ کړِي ۱۴ کورئ هغوي به دَ خس په دود شِي اور به ئې وسیزِي خپل
ځانونه به دَ لمبي له لاس نه بچ نه کړِي او هغه به دَ تودیدلو
دَپارَ انګار نه وِي او نه به دَ کښیناستلو دَپارَ اور شِي چه ورته
۱۵ وغوړیږي ۱۵ نو هغوي چه تا په دوي کښې خوارِي وکړه ستا دَپارَ به
داسي شِي ستا سوداګران له ورکوالي نه هريو په خپل مخ لار
شه څوک نشته چه تا خلاصه کړِي ٭

# اته څلویښتم باب

۱ ۱ دا واورئ اي دَ یعقوب کوره چه دَ اسرائیل په نوم بللي شئ چه
دَ یهودا له اوبو رااووتلي یي چه دَ خداوند په نوم قسم کوِي
هغوي چه الله دَ اسرائیل یادوِي لیکن نه په رښتیني او نه په
۲ حق سره ۲ ځکه چه دَ مقدّس ښهر نوم په ځان بولِي اودَ اسرائیل
۳ په الله تکیه کوِي چه دَ لښکرو خداوند ئې نوم دي ۳ ما له قدیم
نه په وړمبیو خبر وکړ هو ځما له خولي ووت او آګاهي مِ پرِ وکړه
۴ ما ناڅاپه هغه وکړ او وشه ۴ ځکه چه زه پوه شوم چه ته ډیر
۵ سخت یي او ستا غاړه دَ اوسپني رګونه دِي او تندي دِ زیړه ۵ ما
له وړاندِ زماني نه وړاندِ له کیدلو آګاه کړِي تا چه ته و نه وایي
چه ځما بُت وکړ او ځما تراشلي او ځما وېلي کړِي دا و فرمایلي دِي
۶ ۶ تا آوریدلِي دِي او ټول وګوره او تاسي ناخبر یئِ زه به دِ په
نوبو څیزونو اوس آګاه کړم او په هغو پټو چه تا پیژاندلي نه دِي
۷ ۷ هغه اوس پیدا شه او نه په وړاندي زماني کښې او له ورځي
۸ وړاندِ دِ نه واوریدل هسي نه چه ته ووایي ګوره ما پیژاندل ۸ هو
نه تا واوریدل او نه دِ وپیژاندل او له وړاندئِ زماني نه دِ خپل
غوږونه نه پرانتل ځکه چه زه پوهیدم چه ته به په ټګي سره ټګي

۹ وکړي او له کیدي نه عاصي وبللي شوي ۹ زه به دَخپل نوم دَپارَ
خپل غضب ودرنګوم او دَ خپل فخر دَپارَ له تا نه تم شم تاچه
۱۰ پري دِ نه کرم ۱۰ ګوره ته صافه کړي يي ليکن نه په سپينو زرو او
۱۱ ما دَ خوارِي په تناره کښ غوره کړي يي ۱۱ زه دَخپل څان دَپارَ دَ
خپل څان دَپارَ کوم ځکه چه څه لره دِ ځما نوم پليت کړي شي او
۱۲ خپل تمجيد به بل ته ورنه کرم ۱۲ ځما واوره اي يعقوب اواي اسرائيل
۱۳ چه رابللي مِ يي زه هغه يم زه اوّل يم اوزه آخر يم ۱۳ اوځما
لاسونو دَ زمکي بنياد ايښي دي او ښي لاس مِ آسمانونه غوړولي
۱۴ دي زه هغوي وبولم او دوي سره ودريږي ۱۴ تاسي ټول جمع شئ
او واورئ چا له دوي نه دا خبر کړي دَي هغه چه خداوند محبّت
ورسره کړي دَي دده مرضي په بابل پوره کړي او دده بازو به په
۱۵ کلدانيانو وِي ۱۵ ما هو ما خبره کړي دَه او را بللي مِ دي او راوستلي
۱۶ مِ دَي نو لار دَده به کشاده کړي ۱۶ ما ته راوړاندِ شئ دا واورئ
ما له ابتدا نه په پټه کښ خبري کړي نه دي دَ کيدلو له مدي نه
زه هلته کښ وم او اوس خاوند يهوه زه او خپل روح ئي واستولو
۱۷ ۱۷ خداوند ستا فديه ورکوونکي قدّوس دَ اسرائيل داسي وائي چه
زه خداوند الله ستا يم ستا معلّم يم تاچه تا ته فائده درکرم
۱۸ او په هغي لاري دِ روان کرم چه ته به کښ ځي ۱۸ کاشکي چه تا
ځما حکمونه واوريدلي نو ستا سلامتي به د رود په شان وه او ستا
۱۹ صداقت لکه موج د درياب ۱۹ او ستا اولاد به دَ شګي په شان
او ستا دَ کلمو فصل به دَ هغو دَ کلمو په دود وِي دَده نوم به ځما
له وړاندي نه پريکړي نه نابود شي
۲۰ ۲۰ له بابل نه راووزئ دَ کلدانيانو له زمکي وتښتئ دَ
سرود کولو په آواز خبر وکړئ په دغه ندا وکړئ دَ زمکي تر نهايت
ئي خور کړئ ووايئ چه خداوند خپل بنده يعقوب په فديه سره

۲۱ خلاص کړ ۲۱ او به هغو بیابانو کښ دوي تږي نه شول دوي دَپارَ
ئي له کمره نه اوبه جارِي کړي او کمر ئي څیري کړ نو اوبه ور نه
۲۲ راتوي شوي ۲۲ خداوند وائي دَ شریرانو دَپارَ سلامتي نشته ÷

## نه څلویښتم باب

۱ څما واورئِ اي جزیرو او اي لرِي قومونو غوږ ونیسئِ زه خداوند
۲ له کیدې رابللي یم له کلمو دَ مورِ مِ څما نوم ئي یاد کړي دي ۲ او
څما خوله ئي لکه تیره توره کړ: زه ئي دَ خپل لاس به سورِي پټ
کړم او زه ئي آبدار غشي کړم او به خپل کور کښ ئي پټ کړم۔
۳ او ما ته ئي وویل چه ته څما بنده یي هغه اسرائیل چه زه
۴ په ده کښ تمجید کړي شم ۴ لیکن ما وویل چه ما عبث خوارِي
کړي ده او مفت باطل مِ خپل قدرت فنا کړي دي لیکن څما حق
۵ دَ خداوند څخه دي او څما اجر څما دَ الله څخه ۵ او اوس خداوند
وائي هغه چه له کیدې څما پیدا کونکي دي چه مريي دَ ده شم تا چه
یعقوب وده ته را وګرزوي او چه اسرائیل ده ته پیوسته شي
څکه چه به دَ خداوند به سترګو کښ مجید او الله مِ قوت شه
۶ هو هغه وائي چه دا خولږ دَه چه ته څما بنده شي دَپارَ دَ
درولو دَ فرقي دَ یعقوب او دَپارَ دَ راګرزولو دَ اسرائیل محفوظ څما
۷ بلکه زه به تا د قومونو دَپارَ نور وګرزوم تا چه څما خلاصون دَ زمکي
تر نهایت پورِي شي داسي وائي هغه خداوند چه دُ اسرائیل فدیه
کوونکي او دَده قدوس دي هغه ته چه سپک څانَ دَي او زښت
دَ قوم دَي او دَ حاکمانو چاکر دي چه بادشاهان به نظر وکړي او
پورته به شي او سرداران هم نو به سجده وکړي دَ هغه خداوند
دَپارَ چه آمین دَي او قدوس دَ اسرائیل هغه چه ته ئي خوښ
۸ کړي یي ۸ خداوند داسي وائي چه دَ قبولیدلو په وقت کښ تا ته
څواب درکړي دَي او دَ خلاصي په ورځ کښ مِ تا ته مددګاري درکړي

ده نو زه به دِ وساتم او خلقو ته به دَ یارَ دَ وډریدلو دَ زمکي
۹ اودَیارَ دَ ملکیت کولو دَ ملکونو دَ صحرا ۹ چه بندیانو ته ووایئ چه
ووزیئ هغو ته چه په تیاري کښ دِي ظاهر شیئ هغوي به په لارو
۱۰ خړي او په ټولو لوړو به دَ دوي څرځاه وي ۱۰ نه به دوي وږي کیږي
او نه به تږي کیږي او نه به ئي ګرمي وهي او نه نمر: هغه چه په
دوي رحم کړي رهنمائي به ورته وکړي او دَ اوبو چینو ته به ئي ورولي
۱۱ ۱۱ او زه به خپل ټول غرونه لار کړم او خپل سړکونه به اوچت کړي
۱۲ شي ۱۲ ګوره دا به له لري راشي او ګوره دغه به له شمال نه او له
۱۳ مغرب نه او دغه دَ چین له زمکي ۱۳ اي آسمانو سندري ووایئ
او اي زمکو خوښي کوئ غرونه دِ په سندرو وچوي څکه چه خداوند
خپلو خلقو ته تسلي ورکړي دَه او په خپلو محتاجانو به رحم وکړي
۱۴ ۱۴ او صیحون ووئیل چه خداوند زه ترکه کړي یمه او خاوند
۱۵ مِ هیره کړي یمه ۱۵ کنږه ښځه به خپل شیرخوره هیر کړي څه
چه دَ خپلي ګیډي په زوي به رحم ونه کړي څه دغه به ئي هیر
۱۶ کړي نو هم زه به دِ هیر نه کړم ۱۶ ګوره ما په خپلو ورغویو نقش
۱۷ کړي يي ستا دیوالونه مدام څما دَ وړاندي دِي ۱۷ ستا زامنو تلوار
۱۸ وکړ ستا نړونکي او خرابونکي به درنه ووزي ۱۸ په ګرداګرد خپل سترګي
خپلي پورته کړه او وګوره دوي ټول سره جمع شول تا ته راغلهٔ
زه حي یم یهوه وائي چه ته به دا ټول واغوندي لکه قیمتي
۱۹ جامي او دَ ناوي په شان به ملا وتړي ۱۹ په تحقیق سره ستا
خراب ځایونه او ویران او ستا خرابه زمکه او اوس به ته په
۲۰ اوسېدونکو تنګه شي او ستا نغړونکي به لري شي ۲۰ ستا بي اولادي
زامن ستا په غوږونو کښ هم وائي چه په مونږ باندِ ځاي تنګ دَي
۲۱ مونږ ته ځاي راکړه چه و اوسیږو ۲۱ نو ته به په خپل زړه کښ ووائي
چه ما ته دا چا وزیږول او زه خو بي اولاده او شنډه یم ورکه-

نبوي او شړلي شوي يم او دَ دغو پرورش چا وکړ گوره زه خو
يواځي پريښولي شوي وم دغه چرته وو
۲۲ خاوند پروردگار داسي ووايي گوره زه به امتونو ته ۲۲
لاس پورته کړم او خلقو ته به نښان ودروم نو ستا زامن به په
غيږو کښ راوړي او ستا لونړي به په اوږو را واخلي ۲۳ او بادشاهان ۲۳
به ستا پرورش کونکي وِي او ملکي به ئي ستا پي روونکي شِي په
مخونو به زمکي ته تا ته سجده کوِي او ستا دَ پښو گرد به څټي
نو تا به پوه شي چه زه هغه خداوند يم چه څما منتظران به
پښيمانه نه شِي ۲۴ کنړه له جبّار نه به لوټ وشوکاوه شِي څه ۲۴
او يا به په حق نيولي قيدي را پريکړي شي څه ۲۵ هو خداوند داسي وايي ۲۵
چه دَ جبّار لوټ به وشوکاوه شِي او دَ سرکښ لوټ به پريکړي شِي
او زه به ستا له مدّعيانو سره دعوي وکړم او ستا اولاد به خلاص
کړم ۲۶ او ستا په ظالمانو به دَ دوي دَ ځانونو غوښه وخوروم او په ۲۶
خپلو وينو به مست شِي لکه له خوږو شرابونو هر بشر به پوه
شِي چه زه خداوند ستا خلاصونکي او فديه کونکي عزيز دَ يعقوب يم

## پنځوسم باب

۱ خداوند داسي وايي چه ستا دَ مور طلاقنامه چه ما طلاقه کړي ۱
ده چرته ده يا هغه قرضداران چه ته مِ پري خرڅه کړي يي چرته
دِي گوره تاسي دَ خپلو بديو په سبب خرڅ کړي شوئِ او ستاسي
دَ عصيانو په سبب ستاسي مور طلاقه کړي شوي ده ۲ څه لره ۲
چه زه راغلم او سړي نه وُه ما ناره وکړه او ځواب کونکي نه وه
څما لاس له فديه ورکولو لنډ شوي دي څه او يا په ما کښ دَ
خلاصولو قدرت نشته څه گوره زه به خپلي ترټني درياب وچ کوم
رودونو صحرا گرزوم د نه اوبو په سبب به کبان بدبويه کيږي او
له تندي به مړه کيږي ۳ زه آسمانونو ته تاريکي اغوندوم او شيږئ ۳

ئي ښئوني كوم
۴ ۴ خاوند پروردګار ما ته دَ علم ژدكونكو ژبه راكړي دَه تا چه
وپوهيږم چه په يوي خبري دَ ستړي كومك وكړم هر صباح ويښوي
۵ او غوږونه مِ ويښوي تاچه دَ ژدكونكو په څير واورم ۵ خاوند
پروردګار څما غوږونه پرانتلي دِي او ما عناد و نه كړ په ورستو
۶ نه وګرزيدم ۶ ما خپله شاوهونكو ته وركړه او خپل انانګي ويښته
۷ يستونكو ته. خپل مخ مِ له رسوائي او له توكلو پټ نه كړ ۷ او خاوند
پروردګار څما مددګارِي كوِي دي دَپاره به زه خجل شم دي دَپاره ما
۸ خپل مخ لكه بګَرَه وګرزاوه او وپوهيدم چه پښيمانه به نه شم ۸ هغه
نږدي دي چه ما صادق كړِي څوك به راسره جګړه وكړِي چه سره
ودريږو څوك دي خاوند دَ دعوي له ما سره چه ما ته راوړاندي
۹ شي ۹ ګوره خاوند پروردګار به مِ مدد وكړِي هغه څوك دَي چه
په ما حكم كوِي ګوره هغوي ټول به دَ جامي په شان زاړه شي او
يئه به ئي وخوري
۱۰ ۱۰ څوك له تاسي ويريدونكي دَ خداوند دي او دده دَ بنده دَ
آواز آوريدونكي دَي هغه څوك دَي چه په تياري كښ ځي او نور
نه لرِي نو هغه دِ دَ خداوند په نوم توكّل وكړي او په خپل الله
۱۱ دِ تكيه كوِي ۱۱ اي هغو چه تاسي ټول اور بلوئِ او په شونټيو
ملا تړِئِ دَ خپل اور په رڼا دروميُ او په هغو شونټيو چه
تاسي ئي بلوئِ څما له لاس نه به تاسو ته دا وشي چه په درد كښ به څملئ

## يو پنځوسم باب

۱ ۱ څما واورِئِ اي دَ صداقت تابعدارانو چه دَ خداوند طالبان يِئِ
هغه كمر ته چه تاسي ورنه پريكړي شوئِ او دَ هغه كوهِي غار ته
۲ چه تاسي ورنه وكنودلي شوئِ ۲ خپل پلار ابراهيم او ساري ته
چه تاسي ئي وزيږولئِ وګورئِ چه ما هغه وباله او دي بواځي وه

۳ او برکت مِ ورکړ او ډېرمِ کړ ۳ ځکه چه خداوند صيحون ته تسلي
ورکړي ده ڏده ټولو خرابو ته يې تسلي ورکړي ده او ده دَ هغه
بيابان دَ عدن په شان او دَ هغه صحرا دَ خداوند دَ جنّت په شان
کړي دي په هغه کښ به خوښي او خورمي بياموندلې شي حمد
او آواز دَ سرود
۴ ۴ ما ته غوږ ونيسه اي ځما خلق او اي ځما امّته ما ته
غوږ ونيسه ځکه چه شريعت به له ما نه ووزي او خپل انصاف
۵ به ثابت کړم تا چه خلقو ته نور شي ۵ ځما صداقت نژدې دَي ځما
خلاصي را وتلي ده او ځما بازوګان به دَ خلقو انصاف وکړي جزيري
به ځما انتظاري وکړي او ځما په بازو به اميد وکړي
۶ ۶ خپلي سترګي آسمانونو ته پورته کړئ او دَ لاندي زمکي
ته وګورئ چه آسمانونه به لکه لوګي نيست شي او زمکه به لکه
جامه زاړه شي او اوسېدونکي به يې لکه مياشي مړه شي ليکن
خلاصون ځما به تر ابدَ پوري وي او ځما صداقت به زايل نه شي
۷ ۷ ځما واورئ اي دَ صداقت پېژندونکو اي هغو خلقو چه
ځما شريعت مو په زړه کښ دَي تاسي له ملامتي او له بښکنځلو
۸ دَ انسانَ مه وېرېږئ او ترس مه کوئ ۸ ځکه چه دوي به لکه
جامه يڼه وخوري او لکه پشم پويه به يې وخوري ليکن ځما
صداقت به تر ابدَ پوري وي او ځما خلاصون تر زمانو زمانو
پوري
۹ ۹ وېښ شه وېښ شه قوّت واغونده اي بازو دَ خداوندَ
وېښ شه لکه په قديمو ورځو کښ او په وړاندينو زمانو کښ ته
۱۰ نه يې ځه هغه چه درهب ټوټې کړي او دَ اژدها ځېرونکي يې ۱۰ ته
هغه نه يې ځه چه وچولي دَ درياب يې دَ ډېرو ژورو اوبو او ژوري
۱۱ دَ درياب دِ دَ فديه شويو دَ تللو دَ پاره لاري کړي ۱۱ او فديه کړي

شوي دَ خداوند به جاروزي او له سندرو سره به صیحون ته
راځي او دَدوي په سرو به ابدي خوښي وي خورمي او خوښي به
حاصله کړي غم او آه کول به وتښتي
١٢ ١٢ زه هم هغه ستاسي تسلّي درکونکي یم ته څوک یي چه له
انسانه ویریږي چه مري او دَ انسان له زوي نه چه دَ واښو په
١٣ شان به شي ١٣ او تا خپل خداوند هیر کړ چه ستا صانع دَي
او چه دَ آسمانونو غوړونکي دَي او چه بنیاد ږدونکي دَ زمکي دَي
او ته مدام هره ورځ له غضب دَ تنګونکي چه دَ هلاکت دَپارَ تیار
١٤ شوي دي ویره کوي او دَ تنګونکي غضب چرته دَي ١٤ بندیوان به
زر خلاص شي او په کوهي به مړ نه شي او دده ډوډۍ به ورکه
١٥ نه شي ١٥ او زه یهوه ستا الله یم چه دریاب خوځوم نو دده
١٦ موجونه شور کوي خداوند دَ لښکرو يي نوم دَي ١٦ او ما خپلي خبري
ستا په خولي کښ اچولي دي او دَ خپل لاس په سوري مي پټ کړي
يي دَپارَ دَ ودرولو دَ آسمانونو او دَ بنیاد دَ ږدلو دَ زمکي او چه
صیحون ته ووایم چه ته زما امّت يي
١٧ ١٧ پورته شه پورته شه ودریږه اي اورشلیمَ چه دَ
خداوند له لاس دي دَده دَ غضب پیاله څښلي ده تا دَ مستي د
١٨ کاسي پیالي څښلي دَه زبیښلي ده ١٨ له هغو ټولو زامنو چه دي
وزیږول څوک نشته چه يي راکاږي او له هغو ټولو زامنو چه دَي
١٩ وپالل څوک نشته چه تر لاس يي ونیسي ١٩ دواړه درباندي پریوتل
څوک به ستا غمخور شي ویراني او هلاکت او لوږه او توره په چا
٢٠ به تسلّي درکړم ٢٠ ستا زامن ماندَه شول او دَ هري کوڅي په سر کښ
پراته دي لکه اوسَي په جال کښ هغوي چه له غضب دَ خداوند
٢١ ډک شوي دي او له ترټني دَ الله ستا ٢١ دي دَپارَ دا واوره اي
محتاجي او مستي نه په شرابو دي دَپارَ ستا خاوند پروردګار او

ستا الله هغه چه دَ خپل امّت دَپارَ حکم کوِي داسې وايي گوره زه
به ستا له لاس نه دَ مستِي پياله او ثما دَ غضب دَ کاسې پياله
۲۲ به واخلم ته به ئې بيا و نه څښې ۲۳ او زه به ستا دَ عذابونکو په
لاس کښې ورکړم هغوي چه ستا ځان ته ئې ويل چه کوږه شه چه
مونږ تير شو نو تا خپله شا دَ زمکې په دود کښېښودلې ده او لکه
کوڅه دَ تيريدونکو دَپارَ ✝

## دوه‌پنځوسم باب

۱ آ ويښه شه ويښه شه خپله دبدبه واغونده اي صيهونَ دَ خپل
ښايست جامې واغونده اي اورشليمَ مقدّسه ښهرَ ځکه پس له دې
۲ به نا ختنه او نجس به تا کښې نه ننوزي ۲ ځان له خاورې وڅنډه
پورته شه کښېنه اي اورشليمَ خپله غاړه له بندونو پرانزه اي
۳ دَ صيهونَ قيدي لورې ۳ ځکه چه خداوند داسې ويلي دي چه تاسې
۴ مفت خرڅ کړې شوئِ او بې سپينو زرو به فديې آزاد کړې شئ ۴ ځکه
چه خاوند پروردگار داسې ويلي دي چه ثما امّت اول مصر ته کوز
شه چه هلته مسافرِي وکړي بيا آسوريانو په هغه بې سببَ ظلم
۵ وکړ ۵ نو اوس ثما دلته څه دي خداوند وايي چه ثما امّت مفت
نيولي شوي دي هغوي چه په ده تسلّط کونکي دي ناري وهي خداوند
۶ وايي او مدام هره ورځ ثما دَ نوم سپکه کوِي ۶ دې دَپارَ به ثما امّت
ثما نوم وپيژني او دې دَپارَ به په دغي ورځي پوه شي چه زه
هغه يم چه خبرې کونکي دي گورئِ زه يم
۷ ۷ څرنگ ښائسته دي په غرونو باندِ قدمونو دَ هغه چه زيرې
کونکي دي او دَ سلامتي خبر ورکونکي دي چه په خير زيري کونکي
دي چه په خلاصِي خبر ورکونکي دي هغه چه صيهونَ ته وايي چه
۸ ستا الله بادشاهي کوِي ۸ ستا دَ نگهبانو آواز دوي به خپل آوازونه
پورته کړي او سره به سندرې وايي ځکه چه دوي به سترگه

٩ سندرې لره ووينې هركله چه خداوند صيحون ته رجوع وكړي ۹ سندرې
وتړئ اي د اورشليم ويرانو ځكه چه خداوند خپل امت ته تسلي
١٠ وركړې ده او اورشليم ئې په فديې آزاد كړي دي ١٠ خداوند خپل
پاک بازو برمند كړي دي د ورانډ د ستركو د ټولو قومونو نو ټول
اطراف د زمكې به ځمونږ د الله خلاصي ووينې
١١ ١١ بيل شئ له دې ځاي نه ووزئ ناپاک مه مسه كوئ د دې
١٢ له مينځ نه ووزئ اي د خداوند د لوخو اخستونكو پاكې وكړئ ١٢ ځكه
چه تاسې په تلوار و نه وزئ او نه به تښتيدونكي لاړ شئ ځكه چه
خداوند ستاسې د ورانډ تلونكي دي او الله د اسرائيل به ستاسې
ورستار ځي
١٣ ١٣ گوره ځما بنده به عاقل وي بلندي به كوي او ترقي به
١٤ وكړي او ډير جلال دار به شي ١٤ لكه چه ډير تا نه حيران شول دده
شكل هم داسې ډير خراب كړي شوي له انسان او دده صورت زيات
١٥ له بنې آدم نه ١٥ هم هسې به دي په ډيرو امتونو وخاځي دده له
سببه به بادشاهان خپلې خولې بندي كړي ځكه چه دوي به هغه
څه ووينې چه خبر به ئې شوي نه وي او په هغه چه آوريدلي ئې
نه وه پوه به شي ٭

## دري پنځوسم باب

١ ١ چا ځما په خبره ايمان راوړي دي او چا ته د خداوند بازو ښكاره
٢ شوي دي ٢ دده د ورانډ د شبنكې په شان زرغون شه او لكه
ويلې له وچې زمكې: نه ئې ډول .نه ئې ښائست: نو چه مونږ ورته وكتل
٣ نه ئې ښايست چه مونږ ئې خوښ كړو ٣ له سړو نه حقير شوي او
پريښي شوي وه د دردونو سړي او آشنا د غم او لكه يو چه ورنه
ځمونږ مخونه پټ شوي وو سپک كړي شوي او مونږ دده قدر ونه شمارو
٤ ٤ ليكن غمونه ځمونږ ئې واخستل او دردونو ځمونږ ده وزغمل

۵ او مونږ هغه غمزده او وهلې دَ الله او ذليل کړې شوي وګڼلو ۵ او
هغه ځمونږ دَ نافرمانيو په سبب ژوبل شوي وه ځمونږ دَ بدکاريو
په سبب ټکولي شوي وه ځمونږ دَ سلامتيا تنبيه په ده وشوه او دده
۶ په دغهو مونږ شفا وموندله ۶ مونږ ټول دَ ګډورو په شان ورک شولو
هر يو خپلي لاري ته متوجّه شه او خداوند ځمونږ ټوله بدکاري په ده
کښيښوله

۷ ۷ دي مظلوم شه ليکن ده ذليل کړ او خوله ئي وازه نه کړه
لکه ورې چه حلالولو ته بيولي شي او لکه ګډه دَ خپل سکلونکي دَ وړاندې
۸ پته خوله وي او خپله خوله ئي وازه نه کړه ۸ له سختئ او له عدالت
کولو نه ونيولې شه او دده په پيړئ کښ هغه څوک دي چه ګمان وکړي
چه دي دَ ژوندیو له زمکي پريکړي شه ځمونږ امت دَ تقصير په سبب
۹ وهلې شه ۹ او له شريرانو سره ئي دده قبر کړ او له دولتمند سره
دده په مرګ په دي چه ده هيڅ ظلم نه کاوه او دده په خولې کښ
فريب نه وه

۱۰ ۱۰ ليکن خداوند خوښه کړه چه دي وټکوي غمزده ئي کړ چه دده
ځان ئي ذبيحه دَ تقصير کړ دي به خپل نسل ووينې خپلي ورځې
به اوږدي کړي او خوښې دَ خداوند به دده په لاس حاصله شي-
۱۱ ۱۱ دَ خپل ځان له رنږه به ووينې او موړ به شي او ځما دَ صادق بنده
په پيژندلو سره به ډير صادقان وګڼلي شي او دَ دوي بدي به دي واخلي
۱۲ ۱۲ دي دَپاره به زه ده له دَ زورآورو په مينځ کښ برخه ويش وکړم او له
غنيانو سره به لوټ ووېشي دي دَپاره چه ده خپل ځان مرګ ته توي کړ او
له تقصيروارو سره وګڼلي شه او ده دَ ډيرو خطاوي واخستلي او
دَ تقصيروارو دَپاره ئي شفاعت وکړ +

## څلور پنځوسم باب

۱ ۱ اې شنډې ته چه لنګه نه وې سندري وايه په سندرو وچوه

اي هغې چه تهٔ پهٔ حمل دردناکه نهٔ شوي ښځه چه دَ نامیرو اولاد
۲ له میړه والي نهٔ زیات دي خداوند وائي ۲ دَ خپلې خیمې مکان ارت کړه
او دَ خپلو مسکنو پردې وغوړوه مهٔ یې نیسه خپل طناوُنه اوږده
۳ او خپل میخونه مضبوط کړه ۳ ځکه چه تهٔ به پهٔ ښي او پهٔ کیڼ
لورې خوره شي او ستا اولاد به دَ قومونو وارث شي او خراب
۴ ښهرونه به آباد کړي ۴ مه ویریږه ځکه چه تهٔ به پښیمانه نهٔ شي او
نهٔ به خجله شي ځکه چه تهٔ به شرمنده کړی نهٔ شي ځکه
چه تهٔ به ستا دَ ځوانۍ پښیمانۍ هیره کړي او دَ خپل
۵ کونډوالي عار به بیا پهٔ یاد نهٔ کړي ۵ ځکه چه ستا میړهٔ ستا صانع
خداوند دَ لښکرو یې نوم دی او ستا فدیه ورکونکی قدوس دَ اسرائیل
۶ الله دَ ټولې زمکې بللې شي ۶ چه دَ بیلې کړي او دَ غمزده روح والې ښځې
پهٔ شان خداوند بللې یې او لکه دَ ځوانۍ ارتینه چه وشړلې شي ستا
۷ الله وائي ۷ ما لږ لحظه تهٔ ترکه کړي او پهٔ لویو مرحمتونو به دې
۸ جمعه کړم ۸ پهٔ جوش دَ غضب کښې مې یوه لحظه له تا نه مخ خپل پټ
کړ او پهٔ ابدي احسان به پهٔ تا رحم وکړم ستا فدیه کونکي خداوند
۹ وائي ۹ ځکه چه دا خبر ما لره لکه دَ نوح اوبهٔ دي لکه چه ما قسم
کړي دی چه بیا به دَ نوح اوبهٔ پهٔ زمکه تیرې نهٔ شي هم هسې مې
قسم وخوړ چه زهٔ به پهٔ تا پهٔ غضب نهٔ شم او نهٔ به دې وترټم
۱۰ ۱۰ ځکه چه غرونه به لرې شي او غونډۍ به وخوځي لیکن ځما احسان
به له تا نه لرې نهٔ شي او ځما دَ سلامتۍ وعده به وخوځولې نهٔ شي
۱۱ ستا رحیم خداوند وائي ۱۱ اي ذلیلې پریشانې شوې بې تسلې کوره
چه زهٔ به ستا کاڼي پهٔ رانجو سره بنا کړم او پهٔ نیلمو به دې بنیاد
۱۲ کیږدم ۱۲ او زهٔ به ستا کنګرې له لالونو جوړې کړم او ستا دروازې له
۱۳ رڼړو کاڼو او ستا ټول حدونه پهٔ ګران بها کاڼو ۱۳ او ستا
ټول زامن به دَ خداوند شاګردان وي او ستا دَ زامنو سلامتي به

ډېره وِي ۱۴ ته به په صداقت سره پایداره شِي له ظلم نه لرې ته ۱۴
به نه ویرېږي او له ترس نه چه هغه به درنزدې نه شِي ۱۵ کوره ۱۵
هغوي به په جمع کیدلو سره جمع شِي لیکن نه خما له نزد نه هغه
چه ستا په خلاف جمع شِي ستا په لوري به پرېوزي ۱۶ کوره ما پښ ۱۶
پیدا کړ چه سکارو ته په اور کښ دم ورکوي او دَ خپل کار دَ پاره
وسله راوباسِي او ما هلاکونکي پیدا کړي دي چه خرابه ئې کړي ۱۷ هیڅ ۱۷
وسله چه ستا په ضد جوړه شِي کامیابه به نه شِي او هره ژبه
چه په عدالت کښ په تا پورته شِي ته به په هغه حکم وکړې دا
دَ خداوند دَ بندګان میراث دي او دَ دوي صداقت له ما دَي
خداوند وائي ٭

# پنځه پنځوسم باب

آ اي تږیو ټول اوبو ته راشئ او هغوي چه سپین زر نه لري راشي ۱
ورِ پیرې او ورِ خورې راشئ بي سپینو او بي پیسو شراب او شوده
وپیرئ ۲ څه دَ پاره تاسي سپین زر بي ډوډئ وزن کوئ او خپله ۲
خوارِي بې‌مورتیانه تاسي په آوریدلو سره خما واورئ او پاکیزه
وخورئ او ستاسي ځانونه به په وازګو خوند واخلي ۳ تاسو غوږ را ۳
نه کیږدئ او ما ته راشئ واورئ چه ځانونه مو ژوندي وِي او
زه به له تاسي سره ابدي وعده وکړم هغه امانتدار فضلونه دَ
داؤد ۴ کوره ما دَ خلقو دَ پاره یو شاهد جوړ کړ یو شاهزاده او یو ۴
حاکم خلقو ته ۵ کوره یو امت چه ته ئې نه پیژنې درو به ئې بولې ۵
او قومونه چه تا نه پیژني تا ته به په دو درشِي ستا دَ خداوند
الله او دَ اسرائیل دَ قدوس دَ پاره ځکه چه دغه تا ته جلال
درکړ ۶ دَ خداوند طلب کوئ څو چه مونده کیږي دي بولئ څو ۶
چه دي نژدې دَي ۷ شریر دِ خپله لار ترکه کړي او بدکاره دِ ۷
خپل خیالونه او خداوند ته دِ توبه وکړي نو دي به رحم

پوري به و کـــــړي او څمونږ الله ته چه هغه ډېر مغفرت
۸ کوي ۸ ځکه چه څما فکرونه ستاسي فکرونه نه دِي نه ستاسي لاري
۹ څما لاري خداوند وايي ۹ ولي لکه چه آسمانونه له زمکي پورته
دِي هسي څما لاري ستاسي له لارو او څما فکرونه ستاسي له
۱۰ فکرونو ۱۰ ولي لکه چه باران او واوره له آسمانه راکوزيږي او بيا
هلته نه جاروزِي بلکه زمکه سيرابه کوِي او زيږول کوِي او غوټي
۱۱ زرغونوِي او کرونکي ته تخم او خوړونکي ته ډوډئِ ورکړي ۱۱ هم
هسي به څما کلام وِي چه له خولي مِ ووزِي ما ته به بي‌پوره کيدلو
نه جاروزِي بلکه هغه به وکړي چه زه پري خوښ يم او په هغه
۱۲ کښ چه ئي واستاوه کامياب به شِي ۱۲ ځکه چه تاسي به په
خوښي سره وزئِ او په سلامتي سره به څئِ غرونه او غونډئِ
به ستاسي دَ وړاندِ غزل ووايي په ترپ او ټولي وني دَ پټو به
۱۳ خپل لاسونه ټکوِي ۱۳ دَ اغزو په ځاي به صنوبر زرغوني شِي
او دَ لسکوري په ځاي به اوښته پيدا شِي او دَ خداوند لره
به نوم وِي يو ابدِي نښان چه نه پريکيږِي +

## شپږ پنځوسم باب

۱ آ خداوند داسي وايي چه انصاف وساتئِ او صدق جاري کړئِ ځکه
چه څما خلاصون نژدي راتلونکي دَي او څما صداقت ښکاره کيدونکي
۲ ۲ خوښي ده هغه انسان لره چه دا کوِي او زوي دَ انسان ته
چه په دي لاس ټينګ ونيسي ساتونکي دَ سبّت چه نه ئي نجس
۳ کوِي او ساتونکي دَ لاس خپل له هري بدکارئِ نه ۳ او دَ بيګانه
زوي چه له خداوند سره پيوست دي خبره دِ نه کوِي چه ووايي
چه خداوند زه په جدايي سره جدا کړم او خصِي دِ نه وايي کوره
۴ زه وچه ونه يم ۴ ځکه چه خداوند داسي وايي هغو خصيانو
ته چه سبتونه ساتِي او هغه چه څما خوښ دِي اختيار کوِي او

ځما وعدې نیولي لرِي ۵ نو زه به په خپل کور کښې او په خپلو ۵
دیوالونو کښې یوه چبوتره او یو نوم ورکړم چه له زامنو او له
لونړو بهتر وِي او دوی ته به ابدِي نوم ورکړم چه نه پرېکیږِي
۶ او هغه بېګانه زامن چه له خداوند سره پیوسته کیږِي چه دده ۶
خدمت وکړِي او دَ خداوند نوم عزیز لرِي چه دَده بندګان وِي هغه
ټول چه دده سبت ساتِي تاچه ناپاک ئې نه کړِي و ځما وعده
نیولِې لرِي ۷ نو زه به دوی خپل مقدّس غره ته راولم او دَ خپلي ۷
دعا په کور کښې به ئې خوشنود کړم او دَدوی سیزونکي قربانئِ او
ذبیحي به ځما په مذبح قبولي وِي ځکه چه ځما کور به دَ ټولو
خلقو دَپارَ دَ دعا کور بللي شِي ۸ خاوند پروردګار چه جمعَ کونکي ۸
دَ ورکو شویو دَ اسرائیل دَي داسې وائِي چه زه بیا به ده ته دده
و مجمعو ته جمعَ کړم
۹ اي ټولو وحشیانو دَ بیابان راشئِ که نه دَ خوراک دَپارَ ۹
اي ټولو وحشیانو چه په بیابان کښې یئِ ۱۰ دده ټول څوکیداران ۱۰
ړانده دِي نه پوهیږِي ټول ګونګ سپي دِي نه توانیږِي چه وغاپِي
دوی خوب لیدونکي ملاست دِي صینه دار دَ خوب دِي ۱۱ او حرصناک ۱۱
سپي په موړتیا نه پوهیږِي او دوی شپانه دِي فهم نه پېژنِي
ټول خپلو لارو ته متوجّه شول هر یو خپلي ګټې ته له لري
ځاي نه ۱۲ راشئ که نه چه شراب واخلو او نشه وڅښو او ۱۲
دا صبا به لکه دا ورځ لوي وِي بلکه لا ډېر زیات ✣

# اوه پنځوسم باب

۱ صادق برباد کیږي او هیڅوک نشته چه دا په خپل زړه کښې کیږدِي ۱
او دَ احسان کسان بیولي کیږي او څوک نشته چه فکر وکړِي چه
صادق دَ شرارت له مخې بیولي شِي ۲ چه په سلامتي کښې داخل ۲
شِي په خپلو خوابګاهو کښې آرام وکړِي هغه چه په راستي درومِي

٣ ٣ ليکن تاسي دلته نژدي راشئ اي دَ سحرگري زامنو دَ
٤ زناکارو او دَ کنجنئ اولاده ٤ په چا مسخري کوئ او په چا خوله
چينکوئ او چا ته ژبي کاږئ ليکن تاسي خو اولاد دَ فاسقي نسل
٥ دَ دروغو يئ ٥ چه بتانو ته ترهي شني وني لاندي سوزئ او چه
په خوړو کښ دَ کمرو تر سوربو لاندِ دَ خپل اولاد قاتلان يئ -
٦ ٦ دَ خوړي په نرمو کاڼو کښ ستا بخره دَه دغه دغه ستا هسک
دَي او دغه لره تويونکي نذر دِ توي کړي دي او هديي مو دَ باندِ
٧ کړي دِي گنړه له دي نه به زه تسلّي مومم ٧ تا په هسک او لوړ غره
باندي خپله بچاونړه يښي دَه او هلته ورختلي چه ذبيحي دبحه
٨ کړي ٨ او تا دَ دروازي او دَ چوکټ په وروستو خپلي يادکارئ کينبولي
دِي ځکه چه ته بي له ما نه بل ته برمنډه شوي او ورختلي تا
خپله بچاونړه ارته کړي دَه او دَ ځان دَپارَ دِ له هغو سره وعده
کړي دَه او دَ دوي بيچاونړه دِ خوښه کړه -په هغه ځاي کښ چه تا
٩ وکتل ٩ او له تيلو سره بادشاه ته ورغلي يي او ډيره خوشبويي
دِ کړي دَه او خپل استاځي دِ لري ته استولي دي او دوزخ ته دَ
١٠ خپل کوز کړ ١٠ ته په خپلو اوږدو سفرونو ستړي شوي يي او
ودِ نه ويل چه نااميده يم تا دَ خپل لاس گزان بياموند دي دَپارَ
١١ ضعيفه نه شوي ١١ او ته له چا نه وويريدلي او وترسيدي چه
دروغ دِ کړي دي او زه دِ ياد کړي نه يم او نه دِ په خپل زړه کښ
کينبولي دَي ليکن زه خاموش وم او وا له قديمي مُدي نه او ته
١٢ را نه و نه ويريدَلي ١٢ زه به ستا صداقت او عملونه فاش کړم چه
١٣ تا ته به فائده ورنه کړي ١٣ هرکله چه ناري وکړي نو تا دِ ستا
جمع کړي بتان خلاصه کړي ليکن باد به ټول يوسي هوا به ئي
ونيسي ليکن هغه چه په ما توکّل کوي دَ زمکي مالک به شي او
١٤ ځما مقدّس غر به په ميراث مومي ١٤ او و به وايي چه تيار شئ

تیار شئ لار تیاره کړئ اوخما دَ خلقو له لاري ټندک خوره لري
کړئِ ١٥ ځکه چه داسي وايِي هغه عالِي چه بلند دي او ابدي ساکن 15
دَي او قدّوس ئې نوم دَي زه دَ مقدّس په لوړ ځاي استوګنه
کوم او له شکسته او له غريب روح سره هم تاچه روح دَ غريبانو
ژوندي کړم اوچه زړه دَ شکستګانو ژوندي کړم ١٦ ځکه چه زه 16
به تر ابده پوري و نه جګړېږم او تر زماني پوري به په غضب
نه شم ځکه چه روح به خما دَ وړاندِ بې هوښَ شي او هغه
نفسونه چه ما جوړ کړل ١٧ زه دَده دَ کټي دَ بدي په سبب په 17
غضب شولم نو و مِ واهه زه پټ شوم او په غضب شوم
نودي دَ خپل زړه په لاري کښ مرتد لاړ شه ١٨ ما دده لاري 18
وليدي اوزه به شفا ورکړم اوزه به ئې رهنمائي وکړم او ده ته
او دَده غمخوارو ته به بيا تسلّي ورکړم ١٩ زه پيداکونکي دَ ميوي 19
دَ شونډو: لري او نژدي لره: سلام سلام خداوند وايِي زه به شفا
ورکړم ٢٠ او شريران چه دِي دَ ځاپې وهونکي درياب په شان 20
دِي ځکه دغه نه لري چه په قرار شي او دده اوبه خټه او
خره غورزوي ٢١ نشته سلامتي شريرانو لره خما الله وايِي + 21

## اته پنځوسم باب

١ په لوي آواز سره ناره وکړه مه ودريږه خپل آواز دَ شپيلۍ 1
په دود پورته کړه اوخما خلق دَدوي په تقصيرونو خبر کړه او دَ
يعقوب کور دَدوي په خطاؤ ٢ اودوي به مِ ورځ په ورځ ولټوي 2
اوخما دَ لارو په پيژاندلو به خوشحالي کوي دَ هغه ټولي په شان
چه صداقت ئې وکړ او دَ خپل الله انصاف ترکه نه کړه له ما نه
دَ صداقت دَ انصاف سوال وکړي په نژدي کيدلو دَ الله خوښي
کوي ٣ دوي وايِي چه موږ څه لره روژه لوُ او ته نه ګوري موږ 3
خپل ځانونه ذليل کړل او ته لحاظ نه کوي ګورئِ تاسي به دَ خپلي

روژي په ورځ کښې خوشحالي مومئ او ستاسي په ټولو مزدورانو
۴ خپلو جبر کوئ ۴ گورئ تاسي د جګړې او د دعوي دپاره روژي
لرئ او چه د شرارت په سرګوتو وهل وکړئ تاسي روژه نه لرئ
۵ لکه چه نن ورځ خپل آواز په بلندۍ کښې اوروئ ۵ گوره هغه
داسي روژه وي چه ما خوښه کړي ده څه په يوي ورځ کښې به
انسان خپل ځان ذليل کړي خپل سر به د سرکړي په دود کوږ
کړي او تر خپل ځان د لاندې ټپړ او ايري وغوړوي نو ګوره دا
۶ روژه او دا ورځ به مقبولي د خداوند وبولي ۶ دا هغه روژه نه ده
چه ما خوښه کړي ده بندونه د شرارت پرانتل او د زغ غونډي
۷ خلاصول او ټکولي په آزادولو روانول او ټول زغونه ماتول ۷ دا
نه ده څه چه ته خپله ډوډۍ وږي ته ماته کړي او خسته مسکينان
خپل کور ته ننباسي او چه برمنډ ويني پټ ئي کړي او له خپلو
غوښو مخ نه پټوې
۸ ۸ نو هغه وقت به ستا نور د صباح په طور وغوړيږي او
ستا صحت به زر زرغون شي او ستا صداقت به ستا د وړاندې ګوري
۹ او د خداوند جلال به ستا ورستار شي ۹ هغه وقت به ته دعا
وکړي او خداوند به ځواب درکړي ته به زاري وکړي او دي به وائي
گوره زه يم که ته هغه زغ او په ګوتو اشارت او بد ويل له
۱۰ خپل منځ لري کړي ۱۰ او خپل ځان د وږي نفقه کړي او خوار ځان
مور کړي نو ستا نور به په تياري کښې وځليږي او ستا تکه توره
۱۱ تياره به د غرمي په شان وي ۱۱ او خداوند به مدام ستا رهنمائي
کوي او په خشک سالۍ کښې به دِ زړه مور کړي او ستا هډوکي
به خوش خورم کړي نو ته به د تازه باغ په شان شي او لکه چينه
۱۲ د اوبو چه اوبه ئي نه پريکيږي ۱۲ او له تا نه چه دي قديمي خرابي به
بنا کړي ته به د زماني زمانې بنيادونه ودروي نو ته به د سرو

بندونکي او دَ اوسیدلو دَپارَ دَ لارو گرزونکي بللي شي
۱۳ که ته دَ سبّت له ورځي خپلي پښي وگرزوي او دَخپلي ۱۳
خوښي له کار نه ځما په پاکي ورځي کښ او سبّت لذّتناک او مقدّس
دَ خداوند او عزیز و بولي او عزّت ورکړي له خپلو لارو له کولو
نه او له کولو دَ خوښي خپلي نه او دَ خپلي خبري له کولو نه ۱۴ نو ۱۴
ته به هغه وقت په خداوند خوښي وکړي او زه به دِ دَ زمکي په
لوړو ځایونو سور کړم او ستا دَ پلار یعقوب میراث به په تا وخورم
ځکه چه دَ خداوند خولې خبره کړي ده +

# نه پنځوسم باب

۱ گوره دَ خداوند لاس له خلاصولو لنډ نه دي او دَده غوږونه له ۱
آوریدلو درانه نه دِي ۲ بلکه ستاسي بدیو ستاسي او ستاسي دَ ۲
الله په مینځ کښ فاصله کړي ده او ستاسي خطاؤ دَ هغه مخ
درنه پټ کړي دَي ځو چه نه آورِي ۳ ځکه چه ستاسي لاسونه په ۳
وینو پلیت شول او گوتي مو په بدِي ستاسي شونډي دَ دروغو
خبري کړي دي او ژبي مو په شر گویا دِي ۴ هیڅوک نشته چه په ۴
صداقت سره وبولي او هیڅوک نشته چه په انصاف حکم وکړي
دوي په باطل توکّل کوِي او په دروغو خبرِي کوِي دوي په خوارئ
حامل شول او بدي یې وزیږوله ۵ دوي د منگور هاگيِ لتوِي او ۵
دَ غنږي تارونه اوبِي هغه چه دَ هغو هاگيِ وخورِي مړ شِي او
هغه چه ماته کړي شِي منگور ووزِي ۶ دَ هغو تارونه جامه نه کیږِي ۶
او نه به دوي په کارونو خپلو پټ شِي دَدوي کارونه دَ گناه کار
دي او دَدوي په لاسونو کښ دَ ظلم کار دي ۷ دَدوي پښي شرارت ۷
ته ورځِي او دَ ناحق وینو تویولو ته بیړه کوِي دَدوي فکرونه دَ بدِي
فکرونه دِي دَدوي په سړکونو کښ په زور اخستل او تکول دِي
۸ دوي دَ سلامتِي لار نه پیژنِي او دَدوي په گذرگاهو کښ انصاف ۸

نشته دَ خپلو ځانو دَپارَ کړي لاري جوړوي هرڅوک چه په دغي کښ
ځي سلامتي به ونه پيژني ۹ دي دَپارَ حق را نه لري شه او مونږ
٩ صداقت بيا نه موند مونږ نور ګورو ګوره چه تياره ده روښنائي او
مونږ په تکي توري تياري کښ ځو ۱۰ مونږ دَ رانده په شان ديوال
١٠ مسه کوو او لکه چه بي سترګو وِي هسي ئي مسه کوو مونږ په غارمي
کښ داسي تپندک وخوړ لکه په نمازخفتن کښ په تندرستي کښ
١١ لکه مړي ۱۱ مونږ ټول دَ يږ په شان غوريږ کوو او لکه غميدونکي کوتره
غمبيږو مونږ انصاف ګورو او هغه نشته او خلاصون نو هغه رانه
١٢ لري شه ځکه چه تقصيرونه موستا دوراندِ ډير شول او ځمونږ خپلي خطاپه مونږ شاهدي ئي ۱۲ ځکه
چه تقصيرونه ځمونږ له مونږ سره دِي او مونږ خپل خطاوي نه پيژنو
١٣ ۱۳ مونږ له خداي سره تقصير او دروغ کړي دِي او مونږ دَ خپل
الله له پيروي نه ګوښي شولو دَ سرکښي اَو دَ ظلم خبري مو وکړي
١٤ او مونږ له زړه نه دَ دروغو په خبرو ۱۴ حق په ورستو وګرزيده
او صداقت لري ودريده ځکه چه رښتني په سړک کښ پريوتله او
١٥ راستي ننوتلي نه شي ۱۵ او رښتني کميږي او ګوښي کيدونکي له
شر نه خپل ځان ښکار جوړوي نو خداوند ولبدل او دَده په
سترګو کښ بد ښکاره شول چه انصاف نشته
١٦ ۱۶ او ده وليد چه سړي نشته او حيران شه چه شفاعت
کونکي نشته نو دَده بازو دَده دَ ځان دَپارَ خلاصي شه او دَده
١٧ صداقت دَده تکيه شه ۱۷ نو صداقت ئي دَ زغري په دود واغوست
او خلاصون ئي په سر خول کړ او دَ بدل اخستلو جامي ئي دَ پوښاک
١٨ په شان واغوستلي او غيرت ئي لکه چادر واغوست ۱۸ خپلو بغض
کونکو ته به دَدوي دَ عملونو په موافق به غضب بدله ورکړي
١٩ او خپلو دښمنانو ته جزا جزيرو ته به دَ جزا بدله ورکړي ۱۹ نو
په کښ به دَ خداوند دَ نوم ويره وکړي او له نمرخاته نه دَده دَ

جلال هرکله چه دښمن لکه رود راځي نو دَ خداوند دم به ئې دفعه
کړِي ۲۰ او په فديې خلاصونکي به صيحون ته راشِي او توبه‌کارو ته ۲۰
له تقصير نه په يعقوب کښې خداوند وائي ۲۱ ليکن زه چه يم له ۲۱
دوي سره مِې دا وعده ده خداوند وائي هغه روح ځما چه په تا دي
او هغه کلام ځما چه ستا په خولې کښې مِې کيښودلي دَي نه به ستا
له خولې او نه ستا دَ اولاد له خولې او نه ستا دَ اولاد اولاد
له خولې لرې شِي خداوند وائي له اوس نه تر ابدَ پورې *

## شپيتم باب

۱ پاڅه رڼا وکړه ځکه چه ستا رڼا راغله او دَ خداوند جلال په ۱
تا راختلي دي ۲ ځکه ګوره چه تياره به زمکه پټه کړِي او تکه توره ۲
تاريکي به امتونه ليکن په تا بانِدِ به خداوند (نور) وځيږي او دَده
جلال به په تا وليدلي شِي ۳ نو به قومونه ستا نور ته راشِي او ۳
بادشاهان به ستا دَ روښنائي په ختلو کښې
۴ خپلې سترګې په خپل ګرداګرد پورته کړه او وګوره هغوي ۴
ټول جمع کيږي تا ته راځي ستا زامن به له لرې راشِي او ستا
لوڼي به په لاسو واخلي ۵ هغه وقت به ته وګورې او روښانه به ۵
شې او ستا زړه به و ترپيږي او کشاده به شِي ځکه چه دولت دَ
درياب به تا ته دروګرزولي شِي او تونګرِي دَ قومونو به تا ته درشي
۶ کثرت دَ اوښانو به دِ پټه کړِي دَ مديان او دَ عيفه مايه اوښان ۶
به ټول تا ته له سبا نه درشِي هغه به سره زر او لوبان راوړِي
او دَ خداوند په ثنا به زيري کوِي ۷ ټولې غيلې دَ قيدار به تا ځخه ۷
جمع شِي دَ نبايوت مړان به ستا خدمت وکړِي او ځما په مذبح به
قبول شوي وځيږي او زه به دَ خپل جمال کور ښائسته کړم ۸ دا ۸
څوک دي لکه چه اوريځ او لکه کوترې خپل کورته الوزي ۹ جزيري ۹

په یقین سره به ځما انتظار وکړي او دَ ترشیش جهازونه په اوّل
کښ تا چه ستا زامن له لري راتښي او دَدوي سپین او سره زر
به ورسره وِي دَ یارَ دَ نوم دَ خداوند ستا دَ الله او قدوس دَ اسرائیل
چه هغه تا ته جلال داره کړي یي
۱۰ ۱۰ او دَ بیګانهؤ زامن به ستا دیوالونه جوړ کړي او بادشاهان
به ئي ستا خدمت کوي ځکه چه ما په خپل غضب ووهلي او په
۱۱ خپلي مهرباني مې رحم دربانډِ کړي دَي ۱۱ او ستا دروازي به مدام
وازي وي ورځ او شپه به بندي نه. شي تا چه دَ قومونو توانګري
۱۲ تا ته راوړي او دَ هغو دَ بادشاهان به دروستلي شي ۱۲ ځکه چه
هغه قوم او بادشاهت چه ستا خدمت نه کوي نابود به شي او
۱۳ قومونه به خرابي خراب شي ۱۳ دَ لبنان جلال به تا ته راشي سروي
او صنوبر او اوښته به ورسره ځما دَ مقدّس مکان دَ زینت کولو
دَپارَ او دَ خپلو پښو وځاي ته به جلال ورکړم
۱۴ ۱۴ او دَ هغه زامن چه په تا ئي خوار کړي تا ته به ټیټ
درشي او هغه ټول چه ستا سپکه ئي کړي دَه ستا دَ پښو دَ تلي ځنه
به سجده وکړي او تا به دَ خداوند. ښهر صیحون دَ قدّوس دَ
۱۵ اسرائیل بولي ۱۵ په عوض دَ هغو چه ته جدا شوي او نفرت. کړي شوي
وي چه څوک تا ته نه در تیریده زه به دِ ابدي مجد زماني په زماني
۱۶ کړم ۱۶ او ته به دَ قومونو پئي روي او ته به دَ بادشاهانو ئي روي
او ته به پوه شي چه زه خداوند ستا خلاصونکي ستا فدیه درکونکي
۱۷ قادر دَ یعقوب ۱۷ زه به دَ زیړو په بدلي کښ سره زر راوړم او
دَ لرګي په بدلي کښ زیړ او دَ کاڼړو په بدلي اوسپنه او په بدلي
دَ اوسپني کښ سپین زر راوړم او زه به ستا تفحص کونکي
سلامتي او ستا حاکمان صداقت وګرزوم
۱۸ ۱۸ بیا به ستا په زمکه کښ ظلم واوریدلي نه شي او نه په

زور اخستل او تکول ستا په سرحدونو بلکه ستا ديوالونه به په
١٩ خلاصِي او ستا دروازي به په ثنا مسمّیٰ شِي ١٩ بيا به تا لره په ورځ
کښ دَ نمر رڼا نه وِي او نه به دِ دَ رڼا دَپارَ سپوږمِئ روښانه کړِي
٢٠ بلکه خداوند به دِ ابدِي نور او ستا الله به دِ رونق وِي ٢٠ بيا
به ستا نمر ډوب نه شِي او ستا سپوږمِئ به غيبه نه شِي ځکه
چه خداوند به ستا ابدِي نور وِي او ستا دَ وِير ورځي به پوره
٢١ شِي ٢١ او ستا ټول خلق به صادقان وِي تر ابدَ به دَ زمکي وارثان
٢٢ شِي ځما لګولي نهال ځما دَ لاسونو کار چه ځما زينت وشِي ٢٢ وړوکي
به يوزر او کمکي به قوّت ناک ټولي شِي زه خداوند به دَ
هغه په وقت کښ دا زر وکړم ✤

# يوشپيتم باب

١ آ دَ خداوند پروردګار روح په ما دَي ځکه چه خداوند زه مسح
کړم تا چه مسکينانو ته زيري وکړم زه ئي استولي يم چه مات
زړونه وتړم او په بند بيولو ته دَ آزادِي او قيديانو ته دَ خلاصون
٢ منادِي وکړم ٢ او چه دَ خداوند دَ مقبول کال منادِي وکړم او ځمونږ
٣ دَ الله دَ بدل اخستلو دَ ورځي تا چه ټولو وِير کونکو ته تسلّي ورکړم ٣ تا
چه دَ صيحون وِير کونکو دَ کينولو دَپارَ چه په عوض دَ ايرو کښ
سنګار ورکړم او تيل دَ خوشحالِي په عوض دَ وِير کښ او دَ ثناچادر
دَ ناامِيدِي دَ روح په عوض کښ نو هغه دَ صداقت وني لهال دَ
خداوند دَ جلال دَپارَ بللي شِي
٤ ٤ نو دوي به ورانديُ خرابِي جوړي کړي او اولي ويراني به
٥ ودرِوي او خراب ښهرونه به نوِي کړِي ويرانيُ دَ زمانيُ زمانيُ ٥ او
بيګانه به ودريږي او ستاسي ګډي به څروِي او دَ بيګانهؤ زامن
٦ به ستاسي دهقانان او باغوانان وِي ٦ ليکن تاسي به دَ خداوند
کاهنان نومږي شئ ځمونږ دَ الله خادمان به بللي شئ تاسي به

دولت دَ قومونو خورئِ او دَدوي په جلال به تاسي فرمانروائي کوئِ
۷ ۷ په بدل دَ پښيماني ستاسي کښن به دوه کون او په عوض
دَ رسوائي کښن به دوي په خپل حصّه خوشحال شي دي دپاره به
په خپلي زمکي دوه کون ميراث مومي ابدي خوښي به دَدوي وي
۸ ۸ ځکه چه زه خداوند محب دَ حق يم او له شوک نه چه په ظلم
سره وي نفرت کوم او زه به دوي ته آمين اجرت ورکرم او ابدي
وعده به ورسره وکرم او دَدوي نسل به د قومونو په مينځ کښن
۹ وپيژاندلي شي اودَدوي اولاد دَ امتونو په مينځ کښن ۹ هغوي ټول
چه دوي ووينې و به ئي پيژني چه دا هغه نسل دي چه خداوند
دي مبارک کړ
۱۰ ۱۰ زه به په خوښي سره په خداوند خوښي وکړم ځما ځان به
ځما په الله خوشحالي وکړي ځکه چه ده ما ته دَ خلاصي جامي را
واغوستلي دَ صداقت چادر ئي را واغوست دَ ځوم په شان چه په
۱۱ پګړئِ زينت کوي او لکه ناوي چه په کالو ښايسته کوي ۱۱ او لکه چه
زمکه زرغونکي وباسي او لکه چه باغ خپل کرلي زرغونوي هم هسي
به خاوند پروردګار صداقت او ثنا دَ ټولو قومونو دَ وړاند زرغونه کړي *

## دوشپيتم باب

۱ ۱ زه به دَ صيحون دَپاره چپ نه شم او دَ اورشليم دَپاره به قرار نه شم
څو چه دَ هغي صداقت دَ روښنائي په شان و نه وزي او دَدي خلاصي
۲ لکه فانوس تجلي ونه کړي ۲ نو امتونه به ستا صداقت ووينې او
ټول بادشاهان ستا جلال او ته به په نوي نوم مسمّی شي چه دَ
۳ خداوند خوله به ئي په تا کيږدي ۳ او ته به دَ جمال افسر په لاس
دَ خداوند کښن شي او بادشاهانه تاج به ورغوي ستا دَ الله کښن
۴ ۴ بيا به تا ته جدا کړي شوي وويلي نه شي او نه به بيا ستا زمکي
ته ويرانه وويلي شي بلکه نه به حفضيبه بللي شي او ستا زمکه بعوله

ځکه چه خداوند په تا خوښ دَي او ستا زمکه به میړوښه شِي -
5 ۵ لکه چه ځوان پیغله په نکاح کوِي هسې به تا ستا زامن په نکاح
وکړِي او لکه خوشحالي دَ زوم په ناوي هسې به ستا الله په تا خوشحال وِي
6 ۶ اي اورشلیمَ ما ستا په دیوالونو څوکیداران ودرولي دِي چه
ټوله ورځ او ټوله شپه به مدام چُپ نه اوسِي اي دَ خداوند ذکر کونکو
7 تاسي چپ مه اوسئِ ۷ قراري مه کوئِ او مه ئې پرېږدئِ چه قرار شِي
8 ځو چه ټینګ ئې نه کړِي او اورشلیم به زمکه کښ ثنا وګرزوِي ۸ خداوند
په خپل ښي لاس او دَ خپل بازو په قوّت سره قسم وکړ په یقین سره
زه به بیا ستا غله دَ خوراک دَپارَ ستا دښمنانو ته ورنه کړم او نه به
دَ بیګانه ؤ زامن ستا شراب وڅښِي هغه چه تا خوارِي په کښ کړِي ده
9 ۹ بلکه هغه به ئې خوري چه ټول کړِي ئې دِي او دَ خداوند ثنا به کوِي
او دَ هغه جمع کړي ئې دي به ئې څما دَ مقدّس په غولي کښ وڅښِي
10 ۱۰ تیر شئِ تیر شئِ په دروازو دَ خلقو لار تیاره کړئِ سازه کړئِ
سازه کړئِ لار له کاڼو ئې صافه کړئِ امّتونو ته نښان پورته کړئِ
11 ۱۱ ګوره خداوند دَ زمکي ترکنارو پوري خبر ورکړي دي دَ صیحون لور
ته ووایِئ ګوره ستا خلاصون راځِي ګوره دده اجر ورسره دي او جزا
12 ئې دَده دَ وړاندِ ده ۱۲ او دوي به مقدّس امّت په فدیه خلاص
کړِي شوِي دَ خداوند وبولِي او ته به طلب کړي شوي ښهر چه پرِښي
شوي نه دي بللي شي ✣

# دري شپیتم باب

1 ۱ دا څوک دَي چه له آدوم نه راځِي له قرمزي جامو سره له بصرِي
نه ځلیدونکي له خپلو جامو سره دَ خپل قوّت په ډیروالي سره یون کوِي
2 زه چه په لوي صداقت سره ویونکي یم دَ خلاصون دَپارَ قادر ۲ ولي ستا
3 جامي سره دِي او ستا پوشاکونه لکه دَ چرخشت مږونکي ۳ ما یواځي
چرخشت ومښود او له امتونو هیڅوک راسره نه وه هو هغوي م په

خپل غضب ومړل او په خپلي غصّي مِ بنکیمندل او دَ هغو دَ
ژوندانه وبيني ځما په جامو توي شوي دِي او ټول لباس مِ رنګ
۴ کړي دي ۴ ځکه چه بدل اخستلو ورځ ځما په زړه کښ وه او ځما
۵ د فديه ورکولو کال راغلي دَي ۵ نو ما وکتل او څوک مددګار
نه وه او زه حيران شوم چه څوک مِ تم کونکي نه وه نو خپل
۶ بازو مِ راته خلاصون راوړ او ځما غصّي زه تم کړلم ۶ او ما په
خپل غضب خلق پايمال کړل او په خپلي غصي مِ مست کړل او
۷ دَدوي دَ ژوندانه ويني مِ په زمکه وبهَولي ۷ زه به دَ خداوند
احسانونه په ياد کړم دَ خداوند ثنا په موافق دَ هغو ټولو چه
خداوند راته پرورش کړي دِي او دَ هغه لوي خير په سبب
چه ده دَ اسرائيل کور ته دَ خپلو رحمتونو په موافق او په موافق
۸ د ډيرو احسانونو خپلو پرورش کړي دي او ده وويل چه په تحقيق
سره دوي ځما امّت دِي هسي زامن چه خيانت به و نه کړِي
۹ نو دي دَدوي خلاصونکي شه ۹ دَدوي په ټولي تنګي کښ هغه
تنګ کړي شه او دَده دَ حضور فرښتي هغوي خلاص کړل ده
په خپل محبّت او په زړه سوِي خپل په فديي خلاص کړل او پورته
ئې کړل او له ټولو قديمو ورځو ئې واخستل
۱۰ ۱۰ ليکن هغوي سرکښ شول او دده پاک روح ئې غمجن
۱۱ کړ نو هغه دَدوي دښمن شه او ورسره پخپله وَجنګيده ۱۱ بيا
ده وړاندِئ ورځي يادي کړي موسیٰ او دَده امّت چه هغه چرته
دي چه دوي دَ خپلو ګډو دَ شپانه سره له درياب نه راوخېژاول
او چرته دي هغه چه خپل روح القدس دَ هغو په مينځ کښ وګرزاوه
۱۲ ۱۲ هغه چه دَ موسیٰ په ښي لاس دَده دَ جلال بازو تلل کول
هغه چه دَدوي دَ وړاندِ ئي اوبه وڅيرلي تا چه دَ ځان دپارَ ابدِي
۱۳ نوم جوړ کړي ۱۳ هغه چه دوي ئې په ژوري کښ روان کړل لکه آس

په بيابان کښې او نوکر ئې ونه خوړ ۱۴ لکه څناوران چه ژوري ته ۱۴
کوزيږي دَ خداوند روح هغو ته راحت ورکړ هم هسې تا
خپل خلق ته رهنمائي وکړه تاچه دي دځان دَپارَ دَ جلال نوم ساز
کړي

۱۵ له آسمانو وګوره او دَ خپل پاکي او دَ خپل جلالَ له ۱۵
مسکنه نه نظر وکړه چه ستا غيرت او جبروت چرته دِي ؟
ستا دَ کامو چغيدل او ستا رحمتونه څمونږ له لوري منع شول
۱۶ څکه چه ته څمونږ پلار يي آګر که مونږ ابراهيم ونه پيژاندلو ۱۶
او آګر که اسرائيل معلوم نه کړو اي خداوند ته څمونږ ابا يي ستا
نوم له ابدَ څمونږ فديه کونکي دَي

۱۷ اي خداوندَ مونږ دِ ولي له خپلو لارو غلط کړو تا څمونږ ۱۷
زړونه ولي له ويري خپلي سخت کړل دَ خپلو بندګانو دَپارَ چه ستا
دَ ميراث فرقي دِي را وګرځوه ۱۸ تر لږ مدي تا خپل پاک خلق په ۱۸
قبضي کښې ورکړ څمونږ تنګونکو ستا مقدّس پايمال کړ ۱۹ مونږ ۱۹
له ډيري مدي نه دَ هغو په شان شولو چه تا حکم پري
کړي نه دَي او چه ستا په نوم به دوي بللي نه شي ؞

## څلور شپيتم باب

آکاشکي چه ته آسمانونه وڅيري او کوز راشي چه ستا له ۱
حضور نه غرونه وِيلي شِي ۲ لکه چه اور وچ منډان سوزِي ۲
او اور اوبه ايشوِي تاچه ستا دښمنان ستا نوم وپيژني او
چه قومونه ستا له حضور نه وريږيږي ۳ هرګاه چه تا خوفناک ۳
کارونه وکړل چه مونږ ئې انتظار نه کاوه نو ته راکوز شوي او
ستا له حضور نه غرونه وِيلي شول ۴ او له ازل نه چا آوريدلي ۴
نه وُو او نه ئې نغوتلي وُو او نه سترګي بي له تا نه بل الله
وليد چه له خپل انتظار کونکو سره داسي کار کوِي ته له

۵ خوښي کونکي ۵او له راستکارانو سره ملېا کيږي هغوي چه ستا په
لاروکښ ستا ياد کوي ګوره ته په قهر شوي چه مونږ خطا
۶ کړي ده دا تر ابده پوري نو مونږ به خلاص شوڅه ؟ ۶او مونږ
ټول لکه نجس څيز شولو او ټول عملونه دَ صداقت ځمونږ لکه
ګندره جامه او مونږ لکه پاڼي مراوي کيږو اوځمونږ بديو لکه
۷ باد اخستلي يُو ۷ هيڅوک نشته چه ستا نوم وبولي او يا بيدار
شي چه په تا لاس ونيسي ځکه چه تا خپل مخ رانه پټ کړ
۸ او مونږ دِ ځمونږ دَ بديو په سبب وزوړولو ۸ او اوس اي خداوندَ
ته مو پلار يي مونږ خټه يو او ته مو کلال او مونږ ټول ستا د
لاسونو کار يُو
۹ ۹ اي خداوندَ ته په سخت قهر سره زياتي مه کوه او
تر ابده بديِ په ياد مه راوړه ګوره نظر کوه مونږ ټول ستا امّت
۱۰ يُو ۱۰ ستا مقدّس ښهرونه بيابان شول صيحون بيابان شه او
۱۱ اورشليم هيبت ناکه ويرانه ۱۱ ځمونږ دَ پاکي او دَ ښائست کور چه
هلته ځمونږ پلرونو ستا ثنا کوله په اور وسيزلي شه او ځمونږ
۱۲ ټول قيمتي څيزونه خراب شول ۱۲ دي دپاره به ته اي خداوندَ
تم شي څه؟ ګنړه ته به سکوت وکړي څه؟ او په زيات به مو خوار کړي څهٔ؟

## پنځه شپيتم باب

۱ ۱ زه هغو ولټولم چه سوال يُ نه کاوه زه هغو وموندلم
چه طلب يُ نه کړم ما وويل ما ګوره ما ګوره هغه قوم ته
۲ چه ځما په نوم بللي نه شه ۲ ما خپل لاسونه اوږده کړل هغه
سرکښ امّت ته چه په غير صالح لار کښ په خپلو فکرونو بيي
۳ ځي ۳ هغه امّت چه ځما مخ ني مدام په غصّه کړ چه په باغونو
۴ کښ ذبحي کوِي او په خښتو ئي خوشبوئي سيزلي ۴ چه په قبرونو
کښ کښيني او په ګورونو شپي تيروِي چه دَ خنزيرانو غوښي

۵ خوري او په لوښو کښې ئې دَ غوښو زومنه ۵ چه وايي چه ځان
ځنې ودريږه مه رانزدې کيږه ځکه چه زه له تا نه زيات پاک
يم دغه ځما په پوزه کښې لوګي دي يو اور چه ټوله ورځ بليږي
۶ ۶ کوره ځما دَ وړاندِ ليکلي شوي دِي زه به چُپ نه شم بلکه جزا
۷ به ورکړم هو دَ دوي په غيږ کښې به جزا ورکړم ۷ ستاسي بديُ
او ستاسي دَ پلرونو بديُ خداوند وايي هغوي چه په غرونو
ئې خوشبوئي وسيزله او په غونډو ئې ځما سپکه وکړه نو به زه
دَ دوي اول عمل دَ دوي په غيږو کښې ورپيمانه کړم
۸ ۸ خداوند داسي وايي لکه چه يوه پخه دانه دَ انګور چه په
ژنګوري کښې وموندلي شي نو يو ويونکي ووايي چه مه ئې خرابوه
ځکه چه په دغه کښې برکت دي هسي به زه له خپلو بندګانو
۹ سره وکړم تا چه زه ټول هلاک نه کړم ۹ او زه به له يعقوب
يو نسل راوباسم او له يهوداه نه يو وارث ځما دَ غرونو نو
ځما برګزيدګان به ئې وارثان شي او ځما بندګان به هلته
۱۰ کښې اوسي ۱۰ نو به شارون دَ ګډو ځړاګاه شي او دَ عکور خوړه
به دَ غويانو پنډغالي شي ځما هغو خلقو ته چه ځما طلب کوي
۱۱ ۱۱ ليکن تاسي چه خداوند ترکوئ او ځما پاک غر هيروئ
او دَ لوي بخت دَ پاره دسترخوان تياروئ او دَ نصيب دَ پاره ګډ کړي
۱۲ شراب دکوئ ۱۲ زه به مو توري ته معين کړم او تاسي ټول به
ذبحي ته ټيټ کړي شئ ځکه چه ما وبللئ او تاسي ځواب رانه کړ
ما خبره وکړه تاسي نه واوريدل بلکه ځما په سترګو کښې مو
شرارت وکړ او تاسي هغه پسند کړل چه زه پري خوښ نه وم
۱۳ ۱۳ دي دَ پاره خاوند پروردګار داسي وايي کوره ځما بندګان به
خوري او تاسو به وږي يئ کوره ځما بندګان به څښي او تاسي به تږي يئ کوره ځما بندګان
۱۴ به خوښي کوي او تاسي به پښيمانه شئ ۱۴ کوره ځما بندګان به دَ زړه په خوښي

سره سندري وائي او تاسي به دَ زړه په خپګان ناري کوئ
١٥ او دَ روح له ماتوالي به هي هي کوئ ١٥ او تاسي به خپل نوم ځما
دَ برګزیدګانو لعنت ته پرېږدئ او تا به خاوند پروردګار مړ کړي
١٦ او خپل بندګان به په بل نوم وبولي ١٦ هسي چه هغوي چه په
زمکه کښ برکت غواړي په آمین الله به برکت غواړي او هغه
چه په زمکه کښ قسم کوي په آمین الله به قسم کوي ځکه چه
اولي تنګسي هیري شوي او هغه ځما له ستر ګو پټ دي
١٧ ١٧ ځکه ګورئ چه زه نوي آسمانونه او نوي زمکه پیدا کوم
نو وړنبني به په یاد راوړلي نه شي او په زړه به تېر نه شي-
١٨ ١٨ بلکه تر ابده به خوښي او خورمي کوي په هغه کښ چه زه
خالق یم ځکه ګورئ چه زه دَ اورشلیم دَ یوي خوښي خالق یم
١٩ او دَ هغه امّت دَ یوي ښادي ١٩ او زه به په اورشلیم خوښ
شم او په خپل امّت به خورمي کوم او بیا به په ده کښ دَ ژړا
٢٠ آواز واورېدلي نه شي او نه دِ ناري آواز ٢٠ بیا به هلته دَ ورځو
هلک نه وي او نه زوړ چه ورځي ئي پوره نه وي ځکه چه هلک
٢١ به سل کالنئ مري او خطاکار به سل کالنئ لعنتي شي ٢١ او
کورونه به جوړوي او په هغه کښ اوسي او انګور به لګوي او
٢٢ میوي به ئي خوري ٢٢ نه به جوړوي چه بل په کښ اوسي او نه به
لګوي چه بل ئي وخوري ځکه چه ځما دَ خلقو ورځي به دَ ونو دَ
ورځو په شان وي او ځما برګزیدګان به دَ خپلو لاسونو کار استعمال
٢٣ کوي ٢٣ دَ باطل مشقّت به نه کوي او ویری له به و نه زېږي
ځکه چه دوي دَ مبارکو دَ خداوند نسل دي او دَ دوي اولاد ورسره
٢٤ ٢٤ او داسي به وشي چه وړاندِ له هغه چه دوي مِ بولي زه به
٢٥ ځواب ورکړم او چه دوي لا خبري کوي زه به ئي واورم ٢٥ لیوه
او ګډوري به یو ځاي سره څري او زمري به دَ غوایه په شان پروره

خورِي او دَ مار خوراک خاورِي دوي به ښما په ټول پاک غره
کښې نه ضرر رسيږِي او نه به هلاکول کوِي خداوند وايِي *

# شپږ شپيتم باب

۱ آ خداوند داسي وايِي چه آسمانونه ښما کرسِي دَه او زمکه ښما دَ
قدمونو تکيه‌ګاه ښه شان کور به ما ته جوړوئِ او ښما دَ آرام
۲ ځاي به چرته وِي ۲ او دا ټول ښما لاس جوړ کړي دِي نو دا ټول
وشول خداوند وايِي مګر دي ته به نظر وکړم مسکين ته او
۳ شکسته روح ته او ښما دَ کلام ويريدونکي ته ۳ هغه چه غويي
حلالوِي لکه چه انسان ذبح کونکي دَي هغه چه ګډوري حلالوِي
لکه چه دَ سپي مرئِ پريکونکي دَي هغه چه هديه بانډِ کوِي لکه
چه دَ خنزير وينې بانډِ کوِي هغه چه لوبان سيزِي لکه چه
دَ بُت مبارک کونکي دَي بلکه دوي خپلي لاري پسندي کړي دِي او
۴ په خپلو مکروهاتو ئي خپل ځانونه خوشحال کړي دِي ۴ نو زه به هم
دَدوي مصيبتونه پسند کړم او دَدوي ويرونکي په دوي راکاږم ځکه
چه ما وبلل او څوک ځواب کونکي نه وه ما خبره وکړه او دوي وا
نه وريدل بلکه ښما په سترګو کښې ئي شرارت وکړه او هغه ئي
۵ پسند کړه چه زه پري خوښ نه وم ۵ دَ خداوند کلام واورئِ اي
دَدَه دَ کلام ويريدونکو ستاسي هغه ورور وايِي چه کينه درسره
لرِي او ښما دَ نوم دَپارَه ئي شړلي يئِ چه دَ خداوند تمجيد دِ وکړي
نو مونږ به ستاسي خوشحالي ووينو ليکن دوي به پښيمانه شِي
۶ ۶ له ښهرَ دَ غوړين آواز له هيکل نه دَ خداوند آواز چه
۷ خپلو دښمنانو ته بدل ورکونکي دَي ۷ وړاندِ له هغه چه دَ لنګانه
درد نيوله لنګه شوه وړاندِ له هغه چه درد پرِ راته نر زوي ئي
۸ راوړ ۸ چا داسي واوريدل ؟ چا لکه دَه وليدل ؟ کنړه زمکه په يوي

ورځي کښې وزيږولي شي څه ؟ يا څو به يو قوم په يو وار وزيږولي
شي څه ؟ نو په صيحون دَ لنګانه درد ولګيده زامن ئي وزيږول-
٩ ه نو زه به زيږيدني ته راولم او و به نه زيږوم څه ؟ خداوند وائي يا زه
١٠ زيږونکي يم (رحِم) به بند کړم څه ؟ ستا الله وائي ١٠ له اورشليم
سره خوشحالي وکړئ او له ده سره خوري کوئ اي ټولو محبّانو
دَدي له دي سره خوشحالي په خوشحالي کوئ اي ټولو ويرکونکو په
١١ دي ١١ تاچه تاسي ورودئ او ماړه شئ دَدي له تسلي ورکونکو تيو
چه تاسي ئي وزبيښئ او ددي دَجلال دَ پيوخوند واخلئ
١٢ ١٢ ځکه چه خداوند داسي وائي ګورئ زه به په دي باندي
سلامتي دَ رود په شان وګرزوم او دَ قومونو جلال لکه بهيدونکي
والي نو به ئي رودئ او په لاسونو به واخستلي شئ او په زنګنونو
١٣ به نڅولي شئ ١٣ لکه سړي چه مور ئي تسلي ورکوي هم هسي به
زه تاسي ته تسلي درکړم او په اورشليم کښې به تسلي مومئ -
١٤ ١٤ نو تاسي به ئي ووينئ او زړونه به مو خوشحال شي او دَ زړغونو
وانبو په شان به مو هډونه تازه شي او دَ خداوند لاس به دَ
خپلو بندګانو څخه وپيژني شي او په خپلو دښمنانو به په قهر شي
١٥ ١٥ ګوره خداوند به له اور سره راشي او ګاډئ ئي لکه ګرد باد
تاچه دَ خپل غضب په ګرمي او دَده ترټنه دَ اور په لمبي سره
١٦ ور وګرزوي ١٦ ځکه چه خداوند به په اور سره دعویٰ وکړي او
به خپلي توري په ټول بشر او دَ خداوند وژلي به ډير وي -
١٧ ١٧ هغوي چه به باغونو کښې خپل ځانونه مقدّس او پاکوي دَ يوه
دَ ورسته دَ هغو په مينځ کښې چه دَ خنزير غوښي خوري او ناپاک
١٨ او موږکان خوري دوي به سره فنا شي خداوند وائي ١٨ او زه به
دَدوي دَ کارونو او دَ فکرونو خبر درکړم او داسي به وشي چه
زه به ټول قومونه او ژبي جمع کړم او دوي به راشي او ځما جلال

١٩ به ووينې ١٩ او زه به په دوي کښې يوه نښه وکړم او هغوي چه
له دوي نه بچ شوي دي قومونو ته به ئې واستوم ترشيش او فول
او لود ته چه په لېندي جنګ کوي او توبل او ياوان او هغو لرې
جزيرو ته چه ځما خبر ئې اوريدلي نه دې او نه ئې ځما جلال ليدلي
٢٠ دې نو به دَ قومونو په منځ کښې ځما په جلال خبر وکړي ٢٠ او
دوي به ستاسي ټول ورونړه له ټولو قومونو په آسونو او په ګاډيو
او په کجاوو او په قچرو او به ګړګړيو هديه خداوند ته په
پاک غره دَ اورشليم کښې حاضر کړي لکه چه بني‌اسرائيل په پاک
٢١ لوښي کښې دَ خداوند وکور ته هديې راوړي ٢١ او زه به له دوي
٢٢ نه کاهنان او لاويان ونيسم خداوند واېي ٢٢ ځکه لکه چه نوي
آسمانونه او نوي زمکه چه زه به ئې صانع يم ځما دَ وړاندې به
ثابت پاتي شي هسي به ستاسي نسل او ستاسي نوم ثابت پاتي
٢٣ شي ٢٣ او داسي به وشي چه له مياشتي ترمياشتي او له سبت
تر سبت پوري به ټول بشر راځي چه ځما دَ وړاندې سجده وکړي
٢٤ خداوند واېي ٢٤ او دوي به ووزي او دَ هغو کسانو لاشونه
به ويني چه ځما تقصيروار وُو ځکه چه چينجي دَ دوي به
مړه نه شي او دَ دوي اور به مړ نه شي او هر بشر ته قبيح ښکاره
شي *

پښتو شوي له اصلي عبراني ژبي نه په قلم د غلام جلاني لکلي

נביאים

# كلام الله

# نبوت

# يرميه نبي

په مطبع برټش او فارن
بيبل سوسيټي لندن او پېښاور

# دَ ارمیاه نبيِ کتاب

## اول باب

۱ ۱ دَ خلقیاه دَ زوي دَ ارمیاه خبري چه دَ بنیمین په زمکه کښ له
۲ عنتوتي کاهنانو وُه ۲ چه په ده باندِ دَ خداوند کلام دَ امون دَ خوي دَ
یهوداه بادشاه دَ یوسیاه په ورځو کښ دَده دَ بادشاهت په دیارلسم
۳ کال نازل شه ۳ دَ یهوداه دَ بادشاه یهوقیم زوي دَ یوسیاه په ورځو
کښ هم راغي دَ یهوداه دَ بادشاه صدقیاه زوي دَ یوسیاه دَ یولسم کال
ترهغه پوري چه اورشلیم بندیان په پنځمه میاشتي کښ په بند
۴ ۵ بیول شول ۴ نو دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده ۵ او وئي ویل چه
وړاندِ له هغه نه چه ته مِ په کیډي کښ پیدا کړي ما ته وپیژندلي
او وړاندِ له راوتلو له رحم نه مِ ته پاک کړي او ته مِ دَ قومونو دَپارَ
۶ نبي مقرر کړي یي ۶ نو ما وُوِ هاي خداوندَ الله زه ویلي نه شم ځکه چه
۷ زه هلک یم ۷ لیکن خداوند را ته وویل مه وایه چه زه هلک یم ځکه
چه هغوي ټولو ته چه زه دِ ور واستوم ته به ورشي او هرڅه چه زه
۸ ئي درته وفرمایم ته به ئي ووایي ۸ ته دَ هغو له څهرو مه ویریږه
۹ خداوند وایي زه ستا دَ خلاصولو دَپارَ درسره یم ۹ پس خداوند خپل
لاس را وغزاوه ځما خُ ئي مسه کړِ او خداوند را ته وفرمایل چه گوره
۱۰ ما خپلي خبري ستا په خولي کښ واچولي ۱۰ گوره نن ورځ ما تا ته په قومونو
او په بادشاهتونو اختیار درکړ چه وئي کاږي او وئي نړوي او هلاک ئي
کوي او وئي شلوي او بنا ئي کوي او وئي لګوي
۱۱ ۱۱ بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئي ویل چه اي ارمیاه
۱۲ ته څه وبني ما وُوِ چه دَ بادام دَ وُني یو بناخ وینم ۱۲ او خداوند را ته
وفرمایل چه تا ښه لیدلي دي ځکه چه زه به دَ خپل کلام پوره کولو دَپارَ

۱۲ ساتونکي شم ۱۳ دویم وار دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئ ویل
چه ته څه ویني ما ووِ ایشیدونکي دیک وینم چه مخ ئي دَ قطب په
۱۴ لورِي دَي ۱۴ بیا خداوند را ته وفرمائل چه دَ قطب له لوري به هغه بلا راشي
۱۵ چه دَ دي روي زمین په ټولو اوسیدونکیو په وچوي ۱۵ ځکه چه خداوند
فرمائي چه گوره زه به دَ قطب دَ بادشاهانو ټولي ټبري را وبولم دوي به
راشي او هر یو به خپل خپل تخت دَ اورشلیم په دروازو کښ دَ ننوتو په
لاري او دَ هغه دَ ټولو دیوالونو په گردا گرد او دَ یهوداه دَ ټولو ښهرونو په
۱۶ برابري ودروِي ۱۶ او زه به دَ دوي دَ ټول شرارت په باب چه هغوي زه
پریښي یم او دَ بیگانه خدایانو دَ وړاندِ ئي لُبان وسیځل او هم دَ خپلو
لاسونو و کارونو ته ئي سجده وکړه په هغوي خپل حکم وکړم
۱۷ ۱۷ دي دَ پاره ته خپله ملا وتړه ودریږه هر څه چه زه تا ته
فرمایم هغوي ته ووایه دَ هغو دَ څهرو مه ویریږه هسي نه چه زه دِ
۱۸ دَ هغو دَ وړاند پریشان کړم ۱۸ ځکه گوره ما نن ورځ ته دَ ټولي زمکي په
مقابل او دَ یهوداه دَ بادشاهانو په مقابل او دَ هغه دَ امیرانو په مقابل او
دَ هغه دَ کاهنانو په مقابل او دَ ملک دَ خلقو په مقابل یو محکم ښهر
۱۹ او دَ اوسپني ستنه او دَ زیړو دیوال جوړ کړي یي ۱۹ هغوي
خو له تا سره وجگړیدل مگر په تا باندِ به غالب نه شي ځکه چه
خداوند فرمائي زه ستا دَ خلاصون دَ پاره له تا سره یم *

# دویم باب

۱ ۱ بیا دَ خداوند کلام په ما باندِ نازل شه و ئي ویل ۲ چه ته ورشه او دَ
اورشلیم په غوږونو کښ په نارو سره ووایه چه خداوند داسي
فرمائي چه زه تا ستا دَ ځواني دَ مهرباني او ستا دَ واده دَ محبت په
سبب په یاد کوم هرکله چه ته په بیابان کښ هو په هغي زمکي
۳ کښ چه کرلي نه وَه په ما پسي ورستو راتللي ۳ اسرائیل
دَ خداوند مقدّس او دَ ده دَ زیاتي توب وړنبئ میوه ده هغوي چه

دي نغرئ کړم به وګنړلي شي په هغوي به بلا راشي خداوند فرمايي
۴ اي د يعقوب ټبره او د اسرائيل د ټبر ټولو خاندانو د خداوند ۴
کلام واورئ ۵ خداوند داسي فرمايي چه ستاسي پلرونو او نيکونو په ۵
ما کښي کوم بي‌انصافي وموندله چه له ما نه لري شول او د بطلان
پيرو شول او پخپله باطل شول ۶ او دوي نه وويل چه خداوند چرته ۶
دئ چه مونږ ئي د مصر له زمکي راويستلو او په بيابان او په ويراني
او د کندونو په زمکه کښي په وچي او د مرګ د سيوري په زمکه کښي
چه هلته کښي هيڅ سړي نه تيريده او هيڅ آدمزاد استوګنه نه کوله مونږ
وړ وستلو ۷ او ما تاسي و باغي زمکي ته راوستلئ چه تاسي د هغي ميوي ۷
او ښه حاصل وخورئ ليکن هرکله چه تاسي ورننوتلئ نو ځما زمکه
مو ناپاکه کړه او ځما ميراث مو مکروه کړه ۸ کاهنانو نه ويل خداوند چرته ۸
دئ او هغوي چه تورات په لاس کښي اخلي زه ئي نه وپيژندلم او
څرونکيو له ما نه سرکښي وکړه او پيغمبرانو د بعل په (نوم اخستلو) نبوت
وکړ او د هغو څيزونو پيروي ئي وکړه چه فائده نه بخښي ۹ دي ۹
د پاره خداوند فرمايي زه به بيا له تاسو سره دعوی وکړم او ستاسي
د ځلکانو له ځلکانو سره به هم دعوی وکړم ۱۰ ځکه چه د پوري د کتيم ۱۰
جزيره وګورئ او قيدار ته څوک واستوئ ښه ښه فکر وکړئ او ګورئ
که داسي خبره هم جوړه شوي وي لکه چه دا ۱۱ چه کوم قوم خپل خدايان ۱۱
چه په حقيقت کښي خدايان نه دي بدل کړي دي څه؟ ليکن ځما قوم
خپل جلال په هغه څيز چه بي‌فائدي دي بدل کړ ۱۲ اي آسمانونو ۱۲
په دي تعجّب وکړئ هو سخت حيران شئ بي‌حده پريشان شئ خداوند
فرمايي ۱۳ ځکه چه ځما خلقو دوه بدئ وکړي هغوي زه چه د ژوندانه ۱۳
د اوبو چينه يم پريښودم او د خپلو ځانونو د پاره ئي تالابونه وکنودل
خيري شوي تالابونه چه په هغو کښي اوبه لتم کيدلي نه شي ۱۴ اسرائيل ۱۴
غلام وه څه؟ هغه خانه‌زاد وه څه؟ هغه څه د پاره شوک شه

۱۵ ۱۵ ځوانان ببر زمرِي و ده ته غرِيدل هغوي خپل انګولا وکړه او
دده ملک ئي خراب کړ دده ښهرونه وسول هيڅوک اوسيدونکي
۱۶ نشته ۱۶ دَ نوف اولاد او دَ تحفنيس اولاد به هم ستا کوئِ وخيرِي
۱۷ ۱۷ ګنزه دا تا په خپل ځان باندِ کړِي نه دِي څه؟ چه تا خداوند خپل
۱۸ الله ترک کړ هغه وقت چه ده ته په لارِي بيولي ۱۸ او اوس دَ صيهور
اوبه دَ څښلو دپارَ تا ته دَ مصر په لارِي کښ څه پکار دِي او دَ
فرات دَ رود اوبه دَ څښلو دَپارَ تا لره دَ اسور په لارِي کښ څه
۱۹ په کار دِي ۱۹ هم ستا شرارت به تا وتريِي او ستا ياغِيتوب به تا ته
سزا درکړِي پوه شه او وګوره چه دا بد او تريخ کار دَي چه تا خداوند
خپل الله ترک کړِي دَي او چه ځما خوف په تا کښ نشته خداوند دَ
۲۰ لښکرو فرمايِي ۲۰ ځکه چه ډيره موده وشوه چه ما ستا جغ مات کړِي دَي
او بندونه مِ دِ وشلول او و دِ ويل چه زه به تابع نه شم هو په هر
يو اوچت غونډئِ باندِ او تر هري زرغونِي وُنِي دَ لاندِ ته دَ کنچنِي په شان
۲۱ پرته يِي ۲۱ ما ته يو عمده تاک ولګولي بيخي رښتني تخم نو ته ځما دَپارَ
۲۲ ولِي بېګانه او بِي قدره انګور وګرزيدلي ۲۲ که هرڅو ته خپل ځان په
تمن پرېوينځِي او ډير صابون استعمال کړِي نو هم خداوند وايِي چه ستا
۲۳ شرارت ځما په حضور يو داغ لګيدلي دَي ۲۳ ته ولِي وايِي چه زه پليت
نه يم ما دَ بعلو پيروِي کړِي نه ده ته په خوړِي کښ خپلي لاري وګوره
او هرڅه چه تا کړِي دِي معلوم ئي کړه ته ګرندي دَ يوي باکرِي اوښي
۲۴ په دود يِي چه په مستِي سره په خپلي لارِي زغلِي ۲۴ او دَ ګورخري په
شان چه دَ صحرا په اوسيدلو عادِتِي دَه او چه هوس په سبب هوا بوي
کوِي دَ هغي دَ مستِي په حال کښ هغه څوک راګرزولي شِي دَ هغي
لټونکِي نه ستومانه کيږِي هغوي به ئي دَ هغي په مياشتي کښ بياموِي
۲۵ ۲۵ ته خپلي پښي ننګه کړه چه دغه بِي پېزو نه شِي او خپله غاړه
چه تږِي نه شِي ليکن تا وُوِ چه دَ نا اميدِي (خبره دَه) داسي نه ده

ځکه چه زه په بېګانهٔو پاندِ مين شوي يم او په هغو پسي به لاړ
٢٦ شم ٢٦ لکه غل چه و نيولي شي رسوا شي هم هسي دَ اسرائيل
ټبر او دَدوي بادشاهان او دَدوي اميران او دَدوي کاهنان او دَدوي
٢٧ نبيان رسوا کيږي ٢٧ هغوي چه لرګي ته وايي چه ته څمونږ پلار او
کاڼي ته چه تا زه وزيږلم ځکه چه هغوي څما په لوري شا کړه او نه
مخ ليکن دَ خپل غم په وقت کښ به ووايي چه پورته شه خلاص مو کړه
٢٨ ٢٨ مګر ستا معبودان چرته دي چه هغوي دِ دَ ځان دَپارَ جوړ کړل هغوي
دِ پورته شي که ستا دَ غم په وقت دِ خلاصولي شي ځکه اي يهوداه
٢٩ لکه چه ستا ښهرونه ډېر دي هومره ستا معبودان ٢٩ تاسي به ولي له
ما سره بحث کوئ تاسي ټول را نه فاسقان شوي يئِ خداوند وايي -
٣٠ ٣٠ ما ستاسي هلکان عبث و وهل هغوي پند وا نه خست هم ستاسو
خپلو تورو دَ څيرونکي ببر زمري په دود ستاسي نبيان خوړلي دي -
٣١ ٣١ اي تاسي چه دَدې پيړئ يئِ دَ خداوند کلام وګورئ کنړه زه دَ
اسرائيل دَپارَ بيابان يا دَ توږتم زمکه شولم څما خلق ولي وايي چه
څمونږ هرچرته چه مرضي وي هلته کښ به ګرزو بيا تا ته به در نه
٣٢ شو ٣٢ پيغله خپل پسول يا ناوي خپلي جامي هروي ليکن څما خلق
٣٣ له ډيرو ورځو زه هير کړم ٣٣ څله تاسي خپله لار جوړويُ چه دَ عشق
٣٤ طلب کويِ په يقين سره تا بدانو ته هم خپلي لاري وښيلي ٣٤ هم ستا
په لمنو کښ دَ بيګناه مسکينانو دَ ځانونو ويني موندلي شي ما هغوي
٣٥ په کنډر کښ و نه مندل ليکن په دي ټولو ٣٥ سره له دي ته وايي
چه زه بيګناه يم دَده غضب به يقيناً له ما نه وګرزي ګوره زه به
٣٦ په تا پاندِ حکم وکړم په دي ويلو ستا چه ما ګناه کړي نه دَده ٣٦ ته
دَ خپلي لاري بدلولو ته ولي دومره ګرزي له مصرَ به هم ته شرمنده
٣٧ شي لکه چه له اسور نه شرمنده شوي ٣٧ له هغه ځاي نه به هم
لاس په سر ببيي ووزي ځکه چه خداوند هغوي چه تا پري تکيه

وکړه سپک وګڼل او ته به په هغو سره کامیابه نه شي ❖

## دریم باب

۱ آ منل دي چه که څوک سړي خپله ښځه و باسي او هغه له دغه نه
لاړه شي له بل میړه سره شي نو ګنړه هغي ته به بیا ورشي څه؟ او
هغه زمکه به ډیره ناپاکه نه شي؟ لیکن تا له ډیرو یارانو سره کنجني توب
۲ وکړ نو هم ځما په لوري راوګرزه خداوند فرمایي ۲ د غاښیو په لوري
خپلي سترګي پورته کړه او وګوره کوم ځاي دي چه هلته کښ در سره
ملاسنې نه وه د عربو په دود چه په بیابان کښ دي هم هسي ته د
هغو دپاره په لارو باندې کښیناستې تا پخپلو زناکاریو او بدکاریو سره
۳ زمکه ناپاکه کړه ۳ دي دپاره باران منع شه او آخرین پشکال و نه شه
۴ ستا په تنده کنجني توب ظاهر دي او ته شرمیدل نه مني ۴ اوس به ته
په نارو سره ما ته و نه وایي څه؟ چه اي ځما پلاره ته ځما د ځواني
۵ رهنماي يي ۵ دي به مدام خپل غضب لري ګنړه دی به ئي مدام وساتي څه؟ ګوره
تا خو داسي خبري ویلي دي لیکن له تا نه چه څو کیدل بد کار دي وکړ
۶ ۶ د یوسیاه پادشاه په ورځو کښ خداوند ما ته ووې چه تا لیدلي
دي څه؟ چه ګمراه اسرائیل څه کړي دي دي په هر یوه اوچت غره
باندې او تر هري زرغوني وني لاندې ورغلي او هلته ئي کنجني توب وکړه
۷ ۷ او هرکله چه ده دا هر څه وکړه نو ما وویل چه ځما په لوري بیرته
راشه لیکن دي نه را وګرزیده او د ده بیوفا خور یهوداه دا حال ولید
۸ ۸ بیا ما ولیده چه له دي سببه چه دي زناکاري کړي وي ما ګمراه
اسرائیل شړلي وه او طلاقنامه مې ورکړله او سره له دي د ده بیوفا خور
۹ یهوداه نه واوریده بلکه دا هم لاړه شوه کنجني توب ئي وکړه ۹ او داسي
وشول چه دي د خپل کنجني والي په شهرت زمکه ناپاکه کړه او له
۱۰ کاڼړیو او له ونو سره ئي زنا وکړه ۱۰ او سره له دي ټولو د دي بیوفا خور
یهوداه ځما په لوري په خپل ټول زړه نه را وګرزیده مګر په مکر سره

خداوند فرمایي او خداوند ما ته وُوِ چه گمراه اسرائیلي له بیوفا یهودیې ۱۱
نه خپل ځان صادق کـــــــــــړي
دي ۱۲ لاړ شه او دَ قطب په لوري په نارو سره ووایه خداوند ۱۲
فرمایي چه اي گمراه اسرائیلَ بیرته راشه زه به بیا په تا باندې خپل
غضب وا نه چوم ځکه خداوند فرمایي زه مهربان یم زه به تر همیشه
پوري خپل (غضب) نه ولرم ۱۳ تش دَ خپلي بدکاري اقرار وکړه خداوند ۱۳
فرمایي چه تا دَ خداوند خپل الله نه تقصیر کړي دي او تر هري شني
وُني دَ لاندِ دِ له بیگانهوُ سره خپلي لاري وخورولي او ځما آواز دِ وا
نه وریده ۱۴ خداوند فرمایي اي گمراه هلکانو بیرته راشئ ځکه چه زه ۱۴
ستاسو میړه یم او زه به تاسي له هر یوه ښهر نه یو یو او له قومونو
دوه دوه راونیسم و صیحون ته به مو راولم ۱۵ او زه به تاسو ته ښه ۱۵
ځرونکي درکړم او هغي به تاسي په دانایي او په پوهي سره وڅروي -
۱۶ او داسي به وشي خداوند فرمایي هرکله چه په هغو ورځو کښ تاسي ۱۶
په ملک کښ زیات شئ او ډیر شئ نو دوي به بیا ونه وایي چه دَ
خداوند دَ وعدي صندوق نه به دَ هغه خیال دَ هغو په زړونو کښ
راشي او نه به دوي هرگز هغه یاد کړي او نه به ئې بازخواست وکړي
او نه به هغه بیا جوړ کړي شي ۱۷ هغه وقت به اورشلیم دَ خداوند ۱۷
تخت وایه شي او په هغه کښ هم په اورشلیم کښ به ټول غیرقومونه
دَ خداوند په نوم جمع شي او دوي به بیا دَ خپل بد زړه دَ ضد پیروي
ونه کړي ۱۸ په هغو ورځو کښ به دَ یهوداه ټبر دَ اسرائیل له ټبر سره ۱۸
ځي دوي به یوځاي سره دَ قطب له زمکي نه هغي زمکي ته چه دغه
مِ ستاسي پلرونو او نیکونو ته په میراث ورکړي ده راشي ۱۹ لیکن ما ۱۹
وویل چه زه به څرنگ تا دَ هلکانو په منځ کښ کډ کړم او تا ته به
ښائسته او ښه میراث زمکه دَ قومونو له ټولیو نه درکړم بیا ما وُوِ
چه ته به ما ته خپل پلار وایي او ته به بیا ځما له پیروي نه ونه گرزي

۲۰ ۲۰ نو هم لکه چه ارتينه بي‌وفائي سره خپل خاوند لره پرېږدي هم هسي
۲۱ تا اي دَ اسرائيل تېره له ما نه بيوفائي وکړه خداوند فرمايي ۲۱ په
غونډيو يو آواز واوريده شه دَ بني‌اسرائيل دَ ژړا او دَ زاري کولو
ځکه چه هغوي خپله لار کږه کړي دَه او خداوند الله خپل يې هېر
۲۲ کړي دَي ۲۲ اي ګمراهانو هلکانو بيرته راشئ زه به ستاسي ګمراهئ نه
شفا درکړم ګوره موږ تاسي ته دراغلو چه ته اي خداوند دَ موږ الله
۲۳ يي ۲۳ په حقيقت سره دَ غوغا آواز چه په غونډيو او په غرونو کيږي
عبث دَي په يقين سره دَ اسرائيل خلاصون په خداوند زموږ
۲۴ الله دَي ۲۴ ليکن رسوائي دَ موږ دَ ځواني له وقت دَ موږ دَ پلرونو
او نيکونو مال و محنت او دَ هغو ميږي او غوايان دَ هغو زامن او لوڼي
نغرلي دِي ۲۵ موږ به په خپلي شرمندګي کښ پراته اوسو او رسوائي
به مو پټوي دي دَپاره چه موږ او زموږ پلرونه او نيکونه دَ ځواني
له ورځي نه تر نن پوري دَ خداوند خپل الله خطا کړي ده
او موږ دَ خداوند الله خپل دَ آواز فرمان‌برداري و نه کړه +

## څلورم باب

۱ اي اسرائيل که تاسي ګرځئ خداوند فرمايي نو تاسو زما په لوري
را وګرځئ او که تاسي خپل مکروهات زما له نظر نه لري کاږئ يا
۲ تاسي به آواره نه ګرځئ ۲ او که تاسي په ربښتيني او په عدالت او
صداقت سره دَ ژوندي خداوند قسم وخورئ نو قومونه به دَ هغه
په سبب خپل ځان لره مبارک وګڼي او په هغه باندي به فخر وکړي
۳ ۳ ځکه چه خداوند دَ يهوداه او دَ اورشليم سړو ته داسي
فرمايي چه خپله ديوبي زمکه دَ خپل ځان دَپاره يوبي کړئ او دَ اغزيو
۴ په منځ کښ مه کرئ ۴ اي يهوداه خلقو او دَ اورشليم اوسيدونکيو
دَ خداوند دَپاره خپله ختنه کوئ او دَ خپل زړه غرمن پريکاږئ هسي
نه چه ستاسي دَ بدکاريو په سبب زما قهر دَ اور په دود لمبي

وکړي او داسي شِي چه هیڅوک ئي مړولي نه شِي ۵ په یهوداه کښ ۵
مشهوره کړئ او په اورشلیم کښ جار وکړزوئ او ووائي چه تاسي
په ملک کښ قرنا ووهئ په لوړ آواز ناره وکړئ اووائي چه راټول
شئ چه محکمو ښهرونو ته لاړ شُو ۶ تاسي دَ صیحون په لوري نشان ۶
ودروئ خپل پناه ته وتښتئ درنګ مه کوئ ځکه چه زه یو هلاکونکي
او سخت هلاکت دَ قطب له لوري نه راولم ۷ ببر زمری له ځنګل ۷
نه وخوت او دَ قومونو هلاک کونکي کوچ وکړ له خپل ځاي نه وُوت
چه ستا زمکه ویرانه کړي ستا ښهر به داسي ویجاړ شِي چه هلته
کښ به اوسیدونکي پاتي نه شِي ۸ دي دپارَ تاسي خپلي ملا په شیړئ ۸
وتړئ سبني وهئ او وِیر کوئ ځکه چه دَ خداوند تُند قهر له مونږ
نه چپیږي ۹ او هغه ورځ به داسي وشي خداوند وائي چه دَ بادشاه ۹
او دَ شاهزادګانو زړونه به نیست شِي او کاهنان به حیران او نبیان
به بي‌سُده شِي ۱۰ نو ما وُوِ هاي اي څما خداوندَ الله په یقین سره ۱۰
تا دغه قوم ته او اورشلیم ته په ویلو کښ فریب ورکړ چه تاسي به
سلامت یئ اوحال دا دي چه توره په ځان بانډ لګیدلي ده ۱۱ هغه وخت ۱۱
به دي قوم ته اوراورشلیم ته دا وویل شِي چه دَ بیابان ۱۲ له اوچتو ۱۲
ځایونو به یو ګرم باد څما دَ قوم دَ لور په طرف وچلیږي نه دَ درمند
پاکونو او نه دَ څوپ وهلو دپارَ بلکه یو ګرم باد چه له دغو بادونو نه
سخت وِي ما ته به را والوزي اوس به زه په هغو بانډ خپل حکم
وکړم ۱۳ ګوره هغه به داسي وخیژي لکه اوریځي اودَ هغه ګاډئ ۱۳
لکه برېوکئ اودَ هغه آسونه له تجیرانو زیات ګړندي دِي هَي هَي په مونږ
بانډ چه برباد شولو ۱۴ اي اورشلیمَ ته خپل زړه له شرارتَ پاک کړه ۱۴
تا چه ته نجات مومي تر کومه پوري به باطل خیالونه ستا په مینځ کښ
اوسِي ۱۵ ځکه چه له دانَ یو آواز خبر کوي او دَ افرائیم له غره نه دَ ۱۵
عذاب منادِي کیږي ۱۶ قومونو ته ناري کړئ ګوري دَ اورشلیم په باب ۱۶

منادي وکړئ چه څارونکي له لرې ځمکې راځي او د یهوداه د ښهرونو
۱۷ په مقابل به شور وکړي ۱۷ د پټو د ساتونکیو په شان به هغه له
څلور طرفونو وګیر کړي ځکه چه هغه له ما نه یاغي شوي دي خداوند
۱۸ وائي ۱۸ ستا لارو او ستا کارونو ستا دپاره دا حاصل کړل دا ستا شرارت
دی دا تریخ دی ځکه چه د هغه ستا زړه نیسي
۱۹ ۱۹ اې ځما لړمونه اې ځما لړمونه زه د زړه په پردو کښې دردیږم
اې ځما زړه دا کښې زګروی کوي چه زه چپ کیدلی نه شم ځکه اې ځما
۲۰ ځانه تا د قرنا آواز او د جنګ زوږ واوریده ۲۰ په ماتي باندې د ماتي آواز
کیږي په یقین سره ټول روي زمین برباد شه ځما خیمې ناڅاپه او ځما
۲۱ پردې په یو دم بربادې شولې ۲۱ تر څو پورې به زه دا بیرغ ګورم او د قرنا
۲۲ آواز به آورم ۲۲ په حقیقت سره ځما خلق نادان دي دوي زه ونه پیژاندلم
دوي جاهلان هلکان دي او تمیز نه لري په بدي کولو کښې دانا دي
۲۳ لیکن د نیکي کولو دپاره پوه نه لري ۲۳ ما ځمکه وکتل او وئې ګورم چه
۲۴ ویرانه او خالي ده آسمانونه ته هم چه بې نوره دي ۲۴ ما په غرونو نظر
۲۵ وکړ او وئې ګورم چه رپیږي او ټولې غونډۍ له زور نه وخوځیدې ۲۵ ما
وکتل او وئې ګورم چه هیڅ آدمزاد نشته او ټول د هوا مرغان والوتل
۲۶ ۲۶ ما وکتل او وئې ګورم چه باغ صحرا شوله او د خداوند په حضور د ده
۲۷ د قهر د سختي د وړاندې د هغه د ټول ښهرونه مات شول ۲۷ ځکه
چه خداوند داسې وائي چه ټول ملک به ویران شي نو هم زه به ئې یو مخ
۲۸ هلاک نه کړم ۲۸ دې دپاره به ملک ویر وکړي او پاس د آسمان به تاریک
شي ځکه چه ما ویلي دي په هغې پښیمان نه شم ما اراده کړې ده زه به
۲۹ له هغې نه تیر نه شم ۲۹ د آسونو د سوارو او د غشو ویشتونکیو له شور
نه به ټول ښهر وتښتي هغوي به ځنګله ته ورشي او په کمرو ته به
وخیژي هر یو ښهر به پرېښودلي شي او هیڅ سړي به په هغه کښې
۳۰ نه اوسي ۳۰ او ته به اې برباد کړي شوي څه وکړې؟ اګر که ته سره

جوړه واغوندي اګر که نه د زرو په کاليو ځان آراسته کړي اګر که
يځپلو سترګو رانجه پوري کړي نه عبث سنګار کوي ستا عاشقان به
تا سپکه وګڼړي هغوي ستا د ځان طلبګار دي ٣١ ځکه چه ما د هغي ٣١
ښځي غوندِ چه په درد کښ ناوېږي او د هغي په شان چه خپل وړبي
زوي وزيږوي يو دردناک آواز د صيحوَن د لور ازانکه اوريدلي دَه چه
دا نګا وهي او خپل لاسونه غزوي وايي چه هيَ هيَ په ما باندي چه
له خونيانو ځما ځان ستومانه کيږي +

## پنځم باب

١ د اورشليم په کوڅو کښ دي لوري هغه لوري ته وزغلئ او اوس ١
وګورئ او معلوم کړئ او د هغه په چوکونو کښ ولټوئ که ځوک سري
هلته کښ وموئ ځوک به هم وي چه انصاف کوي او د رښتني طلبګار
وي او زه به هغه معاف کړم ٢ او اګر که هغوي وايي چه خداوند ٢
ژوندي دَي نو هم په يقين سره هغوي دروغ قسم خوري ٣ اي خداوندَ ٣
ستا سترګي په رښتني نه دي ځه ؟ تا هغوي وهلي دي هغوي ارمان نه
کړي دَي هغوي دِ تمام کړل ليکن هغوي نصيحت اخستلي نه دَي هغوي
خپلي ځهري له کمره نه زياتي سختي کړي دي هغوي له ګرزيدلو انکار
کړي دَي ٤ نو ما وُوِ چه په يقين سره چه دا مسکينان دي هغوي ٤
جاهلان دي ځکه چه دوي د خداوند له لاري او د خپل الله له عدالت
نه خبر نه دي ٥ زه به خاصو خلقو ته ورشم او ورته و به وايم ځکه ٥
چه هغوي به د خداوند له لاري او د خپل الله له عدالتَ خبر شوي
وِي ليکن هغوي وارو بالکل ژغ مات کړي دَي او بندونه يي شلولي
دِي ٦ دي دَپارَ به د ځنګل ببر زمري هغوي ووژني د نمابنام لېوه ٦
به يُ هلاک کړي شنه زمري به د هغوي د ښهرونو په ګټکنيو کښ
کښيني هرڅوچه له هغو ووځي و به ځيرل شي ځکه چه د هغو
سرکښي ډيري شوي او منافقتونه يُ زيات شول

۷ ۷ دا ستا کار به زه څرنګ معاف کړم ستا زامنو زه پرېښوم او
په هغوي قسم وخوړ چه خدايان نه دي اګر که ما هغوي په نس ماړه
کړي وُو نو هم دوي زناکاري وکړه او دَ کسبيانو په کور لښکري لښکري
۸ سره ټول شول ۸ دوي دَ ډکو اسونو په دود په صبا کښ وګرزيدل
۹ هر يو دَ خپل ګاونډي په ارتيني شنزيده ۹ خداوند فرمايي چه دري
خبرو بازخواست او له داسي قوم به څما ځان بدله وا نه خلي څه ؟
۱۰ ۱۰ ته دَ هغه په ديوالونو وخيژه و ئي نړوه ليکن پوره ئي مه
خرابوه دَ هغي ښاخونه پريکړه ځکه چه هغه دَ خداوند نه دي -
۱۱ ۱۱ ځکه خداوند وايي چه دَ اسرائيل ټبر او دَ يهوداه ټبر له ما سره ډيره
۱۲ بي وفائي وکړه ۱۲ دوي له خداوند نه انکار کړي دَي او و ئي ويل چه
دي نشته دَي په مونږ به هرګز آفت را نه شي او توره او قحط به ونه
۱۳ وينو ۱۳ او نبيان چه دي باد به شي او کلام په هغوي کښ نشته
۱۴ په هغوي به هم هسي وشي ۱۴ نو خداوند دَ لښکر الله داسي وايي
دي دَپارَ چه تاسي دا خبره کوئ نو ګورئ زه به کلام خپل ستا په
۱۵ خولي کښ اور او دا قوم لرګي جوړ کړم او دغه به دوي وڅغري ۱۵ اي
دَ اسرائيل ټبره ګورئ زه به په تاسي يو قوم له لري راولم خداوند
وايي هغه زبردست قوم دَي هغه وړاندني قوم دَي هغه داسي قوم
دَي چه ته ئي په ژبه نه پوهيږي او هرڅه چه هغه وايي ته به پر
۱۶ پوه نه شي ۱۶ دَ هغو ترکش دَ واز قبر په دود دَي هغوي ټول ښاغلي
۱۷ دي ۱۷ ستا دَ لوَ غله او ستا ډوډئ چه ستا دَ زامنو او دَ لوڼو دَ خوراک
وه هغوي به ئي وخوري ستا غواوي غيلي به هغوي وخوري ستا انګور او
ستا انځر به هغوي وخوري ستا محکم ښهرونه چه په هغوي ستا
۱۸ آسره دَه په توري به ئي واوړوي ۱۸ او سره دَدي خداوند وايي چه په
هغو ورځو کښ به دِ پوره هلاک نه کړم
۱۹ ۱۹ او داسي به وشي هرکله چه تاسي خلق ووايئ چه خداوند څمونږ

الله دا ټول کارونه له موږ سره وکړل نو ته به هغوي ته ووايي لکه چه
تاسي خلقو زه پرېښودلم او په خپلي زمکي کښ مو دَ بېګانهٔ معبودانو
عبادت وکړه هم هسي به تاسي په هغي زمکي کښ چه ستاسي نه ده دَ
٢٠ بېګانه خلقو عبادت وکړئ ٢٠ دَ يعقوب په ټبر کښ دا خبره مشهوره کړئ
٢١ او په يهوداه کښ يې منادي وکړئ او ووايئ ٢١ اوس واورئ اي نادانَ او
بي‌عقلَ قومَ چه سترګي لرئ مګر نه وينئ او غوږونه لرئ ليکن نه اورئ
٢٢ خداوند وايي چه تاسي له مانه نه ډارېږئ څه ؟ ٢٢ تاسو ځما په حضور
نه ترهېږئ څه ؟ هغه چه شګه يې دَ سمندر په حد باندِ په يو داسي
قديم حکم سره ايښي دَه چه دَي ورنه تېرېدلي نه شي او که هر څو دَ
هغه چپي غوټي وهي نو هم غالبي کېدلي نه شي هر څو که هغه
٢٣ غرغري کوي نو هم هغه ورنه تېرېدلي نه شي ٢٣ ليکن دَدي قوم زړه
٢٤ باغي او سرکش دَي دوي سرکښي وکړه او لاړ تېر شول ٢٤ دوي پخپل
زړه کښ نه وويل چه موږ دِ له خداوند الله خپل نه وېرېږو
چه دَ هغه په وقت هم وړاندِ هم وروستو بارانونه اوروي هم دَي
دَ فصل مقرّري هفتي دَ موږ دَپارَ موجودي لري
٢٥ ٢٥ ستاسي بدکاريو دا څيزونه له تاسي وګرزول هو ستاسي خطا
٢٦ کاريو دا ښه څيزونه له تاسي منعَ کړه ٢٦ ځکه چه ځما دَ قوم په مېنځ کښ
شرير خلق موندل کېږي هغوي دِ دام لګونکيو په دود په پټوني کښ
٢٧ کښېني دوي جال غوړوي دوي سړي نيسي ٢٧ لکه چه پنجره له مرغانو
ډکه دَه هم هسي دَ هغو کورونه له ټګي ډک دي دي دَپارَ دوي ډېر
٢٨ غنيان او دولتمند شول ٢٨ دوي څاربه شول دوي ځلق وهي دوي په
بد کارونو کښ له شريرانو نه وړاندِ کېږي دوي فرياد دوي دَ يتيمانو
فرياد نه اورِي نو هم دوي مرادمند اوسي او دَ محتاجانو انصاف
٢٩ نه کوي ٢٩ خداوند فرمايي چه زه به ددي خبرو بازخواست ونه کړم
٣٠ څه ؟ او ځما ځان به له داسي قوم بدله-وانه خلي څه ؟ ٣٠ يو حيرتناک

۳۱ او هولناک کار په ملک کښې وشه [۳۱] نبیانِ دَ دروغو نبوّت وړکوِي او
کاهنان دَ هغو په وسیلې حکمونه چلوِي او ځما خلق داسې خبرې
پسندې کوِي اوس به تاسې دَ هغه په آخر کښې څه وکړئِ +

# شپږم باب

۱ آ اي دَ بنیمین زامنو تاسې دَ اورشلیم له منځ نه وتښتئِ او په تقوع کښې
قرنا ووهئِ او په بیتِ هکرم کښې یو نښان بل کړئِ چه دَ قطب له لورې
۲ نه یوه بلا او لوي هلاکت راځِي [۲] زه به دَ صیحون لور چه ښائسته او
۳ نازنینه ده هلاکه کړم [۳] شپانه به له خپلو رمو سره دَ هغې څنګه
راشِي او دَ هغې په ګرداګرد به خیمې ودروِي هر یو به ئې په خپل خپل
۴ ځاي کښې وڅروِي [۴] تاسې دَ هغه سره دَ جنګیدلو مقرّرې وکړئِ پورته
شئِ او مونږ به دَ غرمې په وقت پرې وخیژو هَې هَې په مونږ چه ورځ
۵ کږه کیږِي او دَ ماښام سیورې زیاتیږِي [۵] پورته شئِ په شپې کښې به
پرِ وخیژو او دَ هغه محلونه به ونړوو
۶ [۶] ځکه چه خداوند دَ لښکرو داسې وايِي چه ونې پریکړئِ او دَ
اورشلیم په مقابل مورچه وتړئِ دا هغه ښهر دَي چه بدله ورنه اخستله
۷ شِي دَده په منځ کښې هر قسم ظلم دَي [۷] لکه چه چینه اوبو خوټوِي هم
هسې دا خپله پلیتي پورته کوِي دَ ظلم او دَ لوټ آوازونه په دې کښې
۸ آوریده شِي هردم ځما دَ وړاندِ ناجوړتیا او زخم دِي [۸] اي اورشلیمَ
نصیحت قبول کړه هسې نه چه ځما زړه له تا نه وشلاوه شِي هسې نه
چه زه دِ ویران کړم او بې اوسیدلو زمکه دِ کړم
۹ [۹] خداوند دَ لښکرو داسې وايِي چه هغوي به دَ اسرائیل باقِي پاتې شوي
دَ انګورو په دود بالکل سره ګرد کړي ته خپل لاسونه دَ هغو په دود چه
۱۰ انګور شوکوِي په ټوکریو کښې بیا ننه باسه [۱۰] زه چا ته ووایم او چا ته ئې
وښیم تا چه هغوي واورِي ګوره دَ هغو غوږونه ناختنه دِي تر دې حده
چه دوي آوریدلي نه شِي ګوره دَ خداوند کلام دَ هغو دَپارَ دَ سپکې باعث

دَي دوي په دغه نه خوښېږي ۱۱ دي دَپارَ زه دَ خداوند له قهرَ ډک يم ۱۱
دَده له زغم کولو نه زه ستړي شوي يم ته هغه په کوڅو کښې په ټولو
هلکانو او دَ ځوانانو په ټولي باندِ توي کړه ځکه چه مېړه به له خپلي ښځي
سره او زوړ به له هغه سره چه دَ پوره عمر دَي ونيوي شي ۱۲ او دَ هغو ۱۲
کورونه به له پټيو سره او له ارتينو سره دَ نورو شي ځکه چه خداوند
وايي چه زه به خپل لاس دَ هغي زمکي په اوسيدونکيو باندِ وغزووم ۱۳ دي ۱۳
دَپارَ چه له ډېروکيو نه تر لويو پوري ټول دَ ګټي حرصناک دِي او له نبي
نه تر کاهن پوري هر يو دروغژنه معامله کوِي ۱۴ ځکه چه هغوي ځما دَ ۱۴
قوم دَ لور زخم لږ تش په دي ويلو سره ښه کاوه چه سلامتي سلامتي
اوحال دا دَه چه هيڅ سلامتي نشته ۱۵ دي دپارَ چه هغوي مکروه کارونه ۱۵
کړِي دِي په دوي شرمندګي راغله څه ؟ نه مګر دوي يوه ذرّه شرمنده
نه شول او نه دوي خجل شول دي دَپارَ دوي دَ هغو په مينځ کښې
چه پرېوزِي پري به ووزِي خداوند وايي چه هغه وقت چه زه هغوي ته
سزا ورکړم نو هغوي به وپرېوزِي ۱۶ خداوند وايي چه په لارو باندي ۱۶
ودرېږئِ او ګورئِ او دَ زړو لارو په باب پوښتنه کوئِ چه ښي لاري
چري دِي ؟ او په هغي ځئِ او تاسي خپلو ځانو ته آرام مومئِ مګر
هغوي ووېل چه مونږ به په هغه لاړ نه شو ۱۷ او ما په تاسي باندِ ۱۷
نګهبانان هم مقرّر کړل او ومِ ويل چه دَ قرنا آواز واورئِ ليکن هغوي
ووېل چه مونږ به ئي وا نه ورو
۱۸ په دي سبب اي قومونو واورئِ او اي جماعتَ معلوم کوئِ ۱۸
چه دَ هغو په منځ کښې څه دِي ۱۹ اي زمکي واوره ګوره زه به په دي ۱۹
قوم آفت راولم هو دَ هغو دَ انديښنو ميوه دي دَپارَ چه هغوي
ځما خبره و نه منله او ځما تورِيت ئي رد کړي دَي ۲۰ دَ څه فائدي دَپارَ ۲۰
له سبا نه لُبان او له لري ملک نه خوشبوئي کاني تر ما پوري راځي ـ
ستاسي سيځونکي قرباني ځما پسندي نه دِي. او ستاسي ذبيحي مِ خوښي

٢١ نه دِي ٢١ دي دَپارَ خداوند داسي وائِي چه کوره زه به ټوُدي ورکونکي
ښیزونه دَدي قوم دَ وړاندِ وغورزوم ټوُدي به پلرِ و خوري په هغو به
پرېوزي او پلار او زامن به یو ځاي سره او ګوانډِي او دَ هغه دوست
٢٢ به هم یو ځاي سره هلاک شي ٢٢ خداوند داسي وائِي چه کوره دَ قطب
٢٣ له ملک یو قوم راځي او دَدنیا له سرحدونو به یو قوم راوپښ شي ٢٣ هغوي
لیندي او نېزي اخلِي هغوي سخت‌دله دِي او رحم نه کوِي دَ هغو آواز
لکه قعرِ دریاب غرمبېږي او په آسونو باندِ سواره کېږي او دَ جنګي میړونو
٢٤ په دود به ستا په مقابله اي دَ صیحون لوري صف وتړِي ٢٤ مونږ دَ هغو
شهرت اورېدلي دَي ځمونږ لاسونه سُست شول مونږ په غم او درد کښ
٢٥ دَ لنګېدونکي ارتښي په دود ګرفتار یُو ٢٥ په میدان کښ مه ووزه او په لارِ کی
٢٦ کښ مه ګرزه ځکه چه دَدشمن توره او وېره په هر لوري دِي ٢٦ اي ځما دَ
قوم لوري په ملا شیرِي وتړه او په ایرو کښ و رغړه دَ هغه شان چه
یوه ځوي زوي ئي ومرِي دَ وېر جوړ کړه او ترخه ژړا وکړه ځکه چه لوټېږي
٢٧ به په مونږ باندِ ناڅاپه راشي ٢٧ ما نه دَخپل قوم دَپارَ یو محکم کوټ مقرّر
٢٨ کړي بي چه ته دَدوي لاري وپېژني او وئي ازمايي ٢٨ هغوي ټول واړه
دَ باغي یاغیان دِي هغوي په غیبت ځي هغوي مِس او اسپنه دِي
٢٩ هغوي ټول واړه خرابونکي دِي ٢٩ بټئِ سخت سول کوِي او سرپ له اور نه
٣٠ ورکېږي زرګر بې‌فائدي ویلول کوِي ځکه چه شریران نه بیل کېږي ٣٠ خلق
به دَ هغوي نوم کوټه زر کېږدي ځکه چه خداوند هغوي رد کړي دِي ÷

## اوم باب

١ آ دا هغه کلام دَي چه دَخداوند له طرف نه ارمیاه ته ورسیده او ده
٢ ووېل ٢ ته دَخداوند دَکور په دروازي باندِ ودرېږه او هلته کښ دا
کلام مشهور کړه او ووایه چه اي دَ یهوداه ټولو خلقو چه دَ خداوند
دَ عبادت دَپارَ په دي دروازو ننه ووزئِ دَ خداوند کلام واورئِ —
٣ ٣ خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي فرمائِي چه خپلي خپلي لاري او

خپل خپل کار سم کاږئ پس له هغه به زه تاسي په دي مکانونو کښ
و اوسوم ۴ تاسي په دروغو خبرو اسره مه کوئ چه دَ خداوند هیکل دَ ۴
خداوند هیکل دَ خداوند هیکل دا دي ۵ ځکه چه که تاسي خپله لار ۵
او خپل کارونه درست سم کاږئ که تاسي دَ سړي او دَ هغه دَ همسایه
په مینځ کښ هر شان انصاف وکړئ ۶ او که په مسافر او په یتیم او په ۶
کونډي ظلم نه کوئ او په دي مکان کښ دَ بیګناه وینې نه بهوئ او دَ
بیګانه معبودانو پیروي ستاسي دَ نقصان دَپارَ نه کوئ ۷ نو زه به تاسي ۷
په دي مکان کښ او په دي زمکه کښ چه دغه مِ ستاسي پلرونو ته
له قدیمه دَ همیشه دَپارَ ورکړي دَه و اوسوم
۸ ګورئ تاسي په دروغو خبرو چه فائده نه لري اعتبار کوئ ۹ تاسي ۸ ۹
به غلا وکړئ څه؟ خون به وکړئ زنا به وکړئ دروغ قسم به وخورئ
او دَ بعل دَ وړاندِ به لُبان وسیځئ او دَ غیر معبودانو چه هغوي تاسي
نه پیژاندل پیروي به وکړئ څه؟ ۱۰ او څما په حضور په دي کور کښ چه ۱۰
څما په نوم بللي شي ودریږئ او وایئ چه مونږ خلاصي موندلي دَه تاچه
دا ټول نفرتي کارونَ وکړو ۱۱ دا کور چه څما په نوم بللي شي ستاسي په ۱۱
سترګو کښ دَ غلونو غار دَي څه؟ ګوره خداوند وایي چه ما هم لیدلي دي
۱۲ پس اوس څما هغه مکان ته چه په شیلاح کښ وه چه په هغه ۱۲
باندِ ما وړنبي خپل نوم مقرّر کړي وه ورشئ او ګورئ چه ما دَ خپل
ټولي داسرائیل دبدي په سبب څه کړ ۱۳ او اوس دي دَپارَ چه تاسي ۱۳
خلقو دا ټول کارونه وکړل خداوند وایي او زه وقتي پورته شوم تاسي
ته مِ ووِ او په ویلو کښ وم لیکن تاسي نه واوریدل او ما تاسي
را وبللئ لیکن تاسي ځواب را نه کړ ۱۴ نو زه به له دغه کور سره ۱۴
چه څما په نوم وباله شه چه په دغه باندِ ستاسي توکّل دَي او له
دغه مکانَ سره چه دغه مِ ستاسي پلرونو او نیکونو ته ورکړ هم
هغه به وکړم چه ما له شیلاح سره کړي دي ۱۵ او زه به تاسي له خپل ۱۵

حضور نه وغورزوم لکه چه ما ستاسي ټول ورونړه یعني دَ افرائیم
۱۶ ټول اولاد غورزولي دَي ۱۶ دي دَپارَ ته دَ دي قوم دَپارَ دعا مه غواړه
او دَ هغو دَپارَ آواز مه پورته کوه او مه زارِي کوه او ما ته شفاعت
مه کوه چه زه به ستا وا نه ورم
۱۷ ۱۷ ته نه ویني څه؟ هغه څه چه دي ئي دَ یهوداه په ښهرونو
۱۸ کښ او دَ اورشلیم په کوڅو کښ کوي؟ ۱۸ چه هلکان لرګي ټولوِي او
پلرونه ئي اور بلوِي او ښځي اوړه اغږي تاچه دَ آسمان دَ ملکي دَپارَ
کُلچي جوړي کړِي او بیګانه معبودانو ته پخلي یوخ کړِي دي دَپارَ چه
۱۹ ما په غصّه کړِي ۱۹ خداوند وايي چه هغوي ما په غصّه کوي څه؟
دوي پخپله دَ خپلي زرد رويْ دَپارَ خپل ځان لره په غصه کښ نه
۲۰ راوړِي څه؟ ۲۰ دي دَپارَ خاوند یَهوَهْ داسي وايي چه ګوره ځما غضب
او ځما قهر به په دي مکان باندِ او په انسان باندِ او په حیوان او دَ
میدان په ونو باندِ او دَ زمکي په حاصلو به توي شِي او هغه به بل
۲۱ شِي او مړ به نه شِي ۲۱ خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي فرمايي
چه پخپلو ذبحو باندِ خپلي سوځونکي قربانيِ هم زياتي کانړِيْ اوغوښي خوړِيْ
۲۲ ۲۲ ځکه چه په هغي ورځي چه ما ستاسي پلرونه او نیکونه دَ مصر له
زمکي نه را وویستل هغوي ته مِ دَ سوځونکي قربانِي او دَ ذبحي په باب
۲۳ هیڅ نه وویل او حکم مِ ورنه کړ ۲۳ بلکه هغوي ته مِ دومره حکم ورکړ
چه ځما آواز واورِيْ او زه به ستا الله شم او تاسي به ځما خلق يئِ
او په هغو ټولو لارو ځيْ چه ما تاسي ته فرمايلي دِي تاچه ستاسي ښیګړه
۲۴ وِي ۲۴ لیکن نه دوي واورېدل نه ئي غوږونه کیښودل بلکه پخپلو مصلحتونو
او دَ خپل بد زړه په ضد باندِ لاړل او ورستو شول او وړاندِ نه شول
۲۵ ۲۵ له هغي ورځي چه ستاسي پلرونه او نیکونه دَ مصر له زمکي را
ووتل تر نن ورځي پوري ما تاسي ته خپل ټول خدمتګذار نبيان واستول
۲۶ زهِ هره ورځ صباح وقتي پورته شوم دوي مِ درواستول ۲۶ لیکن هغوي

ځما نه واوریدل او خپل غوږونه ئې نه کیښودل بلکه خپله غاړه ئې
سخته کړه هغوي له خپلو پلرونو او نیکونو زیاته بدکاري وکړه
۲۷ اګر که ته دا ټولي خبري هغوي ته ووایې مګر هغوي به دِ وا ۲۷
نه وري اګر که ته هغوي در و بولې لیکن هغوي به ځواب در نه کړي ۲۸ نو ۲۸
ته هغوي ته ووایه چه دا هغه قوم دَی چه دَ خداوند خپل الله آواز
نه اوري او تربیه نه مني رښتني ورکه شوه او دَ هغو له خولو پریکړه
شوه ۲۹ اي اورشلیمَ خپل ویښته ئې وخریه او و ئې غورزوه او لوړو ځایونو ۲۹
ته ویر وخیژوه ځکه چه خداوند هغه پیړئ چه ددي قهر پري زیات شوي
وه سپک کړي او ترک کړي ئې دَي ۳۰ چه دَ یهوداه زامنو ځما په نظر ۳۰
کښي بدي کړي دَه خداوند وایې په هغه کور کښي چه ځما په نوم بللي شي
دوي خپل مکروهات کیښودلي دِي چه هغه ناپاک کړي ۳۱ او هغوي ۳۱
دَ توفتَ اوچت مکانونه چه دَ بن هنومَ په خوړي کښي دَي جوړ کړل چه خپل
زامن او لوڼي به اور کښي و سیځي چه ما ئې حکم ورکړي نه دَي او نه
ځما په زړه کښي راغلي وه ۳۲ دي دپارَ کوره هغي ورځي راځي خداوند ۳۲
وایې چه وړاندِ به دا توفتَ نه وباله شي او نه دَ بن هنومَ خوړه بلکه
دَ قتل خوړه به ویله شي هغوي به په توفتَ تر دي حده پوري ښخ
کړي چه ځاي به پاتي نه شي ۳۳ او دَ دي قوم لاشونه به دَ هوا دَ ۳۳
مرغانو او دَ زمکي دَ ځرندګانو خوراک شي او هیڅوک به ئې ونه شړي
۳۴ نو به زه دَ یهوداه له ښهرونو او دَ اورشلیم له کوڅو دَ خوشي آواز او دَ ښادي ۳۴
آواز دَ زلمي آواز دَ ناوي آواز موقوف کړم ځکه چه زمکه به ویرانه شي *

## اتم باب

۱ خداوند فرمایې چه هغه وقت به دَ یهوداه دَ بادشاهانو هډونه او ۱
دَ هغه دَ سردارانو هډونه او دَ کاهنانو هډونه او دَ نبیانو هډونه
او دَ اورشلیم دَ اوسیدونکیو هډونه به دَ هغو له قبرونو راوباسي
۲ او هغوي به ئې دَ نمر او دَ سپوږمۍ او دَ ټول آسماني لښکر دَ وړاندِ ۲

چه هغوي دَ دوي سره مينه کړي دَه او چه دَ دوي خدمت ئي کړي
دَي او چه دوي پيروي ئي کړي دَه او چه له هغو ئي پوښتنه کړي
دَه او چه هغو ته ئي سجده کړي ده وغوړوي دوي به جمع نه شِي او
نه به ښخ کړي شِي بلکه دوي به په مخ دَ زمکي دَ ګندګي په دود وِي
۳ ۳ او هغوي ټول خلق چه له دغه بده ټبرَ به باقِي پاتي شِي به هغو
ټولو باقِي مکانو کښِ چه هلته کښِ مِ دوي شړلِي دِي مرګ به له
ژوند نه زيات غوره شِي خداوند له لښکرو فرمايِي
۴ ۴ ته هم ورته ووايه چه خداوند داسي وايِي چه هغه کسان
به و پرزِي او بيا به پورته نه شِي څه ؟ يو به وجاروزِي او بيا به
۵ را نه ګرزِي څه ؟ ۵ پس دَ اورشليم دا خلق به څله دَ هميشه
ګرزيدنِي سره برګشته وِي هغوي مکر ټينګ نيسِي او له بيرته راتلو انکار
۶ کوِي ۶ ما غوږ کيښود او وامِ وريدل هغوي سمي خبري نه کوِي هيڅ
له خپلي بدِي نه په توبه کولو سره و نه ويل چه ما څه کړي دَي هر يو
په خپلو لارو بيرته لاړ شه لکه چه آس په جنګ کښِ په ترپ زغلِي
۷ ۷ هو ډينګ په آسمانو کښِ خپل مقرّر وقتونه پيژنِي او ټمرِي او ابابيل
او زانړه دَ خپلو راتلو وقت ساتِي ليکن زما قوم دَ خداوند عدالت نه پيژنِي
۸ ۸ تاسي څله وايِئ چه مونږ دانايان او دَ خداوند تورات دِ مونږ سره
دَي ګوره په حقيقت سره دَ کاتبانو دروغژن قلم په دروغو سره جوړ کړي
۹ دَي ۹ دانايان شرمنده شول حيران او ونيول شول ګوره هغوي دَ خداوند کلام
۱۰ رد کړ نو په هغوي کښِ به څه دانايِي وِي ۱۰ دي دَپارَ به دَ هغو ښځي
نورو ته او دَ هغو پټي هغوي ته چه دَ دوي وارثان به شِي ور به ئي
کړم څکه چه هغوي ټول که لوي دِي که واړه دَ ګټي حرصناک دِي
۱۱ او له نبِي تر کاهن پوري هر يو دروغ کوِي او هغوي زما دَ قوم دَ لور
زخم صرف په لږ څه شفا وکړه چه سلامتِي سلامتِي دَه او چه سلامتِي
۱۲ نه وه ۱۲ ګنړه هغوي هغه وقت چه مکروه کارونه ئي وکړل شرمنده شول

څه ؟ نه یوه ذرّه هم شرمنده نه شول هغوي په شرمیدلو نه پوهیږي
دَپارَ دَ دي به دَ پریوتونکیو په مینځ کښِ پریوزِي خداوند وایِي هغه
وقت چه زه له هغوي بدله واخلم نو هغوي به وغورزولي شِي ١٣ زه ١٣
به هغوي بیخي فنا کړم خداوند وایِي په تاک کښِ به انګور نه وِي او
دَ انځیر په ونو کښِ به انځیر نه وِي او پاڼِي به هم وچي شِي او زه
به دَ هغوي دَپارَ هغه خلق مقرّر کړم چه ورباندِ به تیریږي ١۴ مونږ ١۴
ولي چپ ناست یُو راشئ چه یو ځاي شُو او په محکمو ښهرونو کښِ
ننوزُو او هلته پټه خوله اوسُو ځکه چه خداوند دَ مونږ الله مونږ
پټه خوله کړِي یُو او مونږ ته ئې دَ ځښلو دَپارَ دَ زهرِقاتلو اوبه راکړِي
دِي دَي دَپارَ چه مونږ دَ خداوند ګناه کړِي دَه ١٥ مونږ دَ سلامتي ١٥
منتظر وُو او مطلق خیر نه وه او دَ صحت موندلو دَ وقت او ګوره
دهشت ١٦ دَ هغه دَ آسونو دَ شنزِهار آواز له دانَ آوریده شِي دَ هغه ١٦
دَ جنګِي آسونو دَ هنړیدلو له آواز نه ټوله زمکه ورپیدله چه هغوي
راغلل او زمکه او هر څه چه په هغې کښِ دِي او ښهرونه هم دَ هغه
له اوسیدونکیو سره ئې ټول نغړلي دِي ١٧ ګوره ستا په مینځ کښِ منګوران ١٧
او ماران آستوم چه په هغو باندِ به منتر اثر نه کوِي او هغوي به
تاسو وچیچي خداوند وایِي
١٨ اي ځما دَ غم تسلي چرته یي ځما زړه په ما کښِ سُست شه ١٨
١٩ ګوره ځما دَ قوم دَ لور دَ ژړا آواز له لري ملک نه راځِي خداوند په ١٩
صیحون کښِ نشته څه ؟ دَ هغه بادشاه دَ هغه په مینځ کښِ نشته
څه ؟ هغوي ولي پخپلو تراشلیو بتانو او په بیګانه بطلانونو زه په غصّي
کښِ راوستلم ٢٠ دَ لو وقت تیر شه دَ ګرمي ورځي تمامي شوي او مونږ ٢٠
خلاصون و نه موند ٢١ ځما دَ قوم دَ لور دَ شکستګِي په سبب زه شکسته دله شوم ٢١
زه کړیدلي یم زه حیرانِي ګرفتار کړِي یم ٢٢ په جلعاد کښِ بلسان نشته دَه ٢٢
څه ؟ هلته کښِ څوک طبیب نشته څه ؟ ځما دَ قوم لور ولي نه جوړیږي

# نهم باب

۱ آ اي کاشکي چه څما سر اوبه شولي او څما سترګي د اوښکو چیني شولي
پس له هغه به ما د خپل قوم د لور په وژلیو ورځ او شپه ژړلي وه -
۲ ۲ کاشکي چه څما د پاره په بیابان کښ د مسافرانو د اوسیدلو مکان وي نو
به ما خپل قوم پرېښي وه او له هغو به ووتلم ځکه چه هغوي ټول زناکار
۳ دي او د ټګانو ټولي ۳ هغوي خپلي ژبي د لیندي په دود د دروغو ویلو
د پاره راکاږي مګر د رښتني د پاره په زمکي کښ زړه‌ور نه دي ځکه چه دوي
۴ له بدو نه تر بدو پوري ووځي او ما نه پېژني خداوند وايي ۴ هر یو د له
خپل ګاونډي سره هوښیار اوسي او تاسي په هیڅ ورور باندِ اعتماد
مه کوئِ ځکه چه هر یو ورور به په پښدئِ سره پښدئِ و نیسي او هر یو
۵ همسایه به په غیبت کولو سره وګرزي ۵ او هر یو به خپل ګاونډي ته
فریب ورکړي او رښتیا رښتیا به و نه وايي هغوي خپلو ژبو ته دروغ
۶ ویل زده کړي دي او په بدي کولو کښ ځانونه ستړي کوي ۶ ستا د
اسنوګني مقام د فریب په مینځ کښ دي په فریب سره هغوي څما له پېژندګلوي
۷ انکار کوي خداوند وايي ۷ دي د پاره خداوند د لښکرو داسي وايي ګوره
زه به هغوي ویلي کړم او هغوي به وآزمایم ځکه چه زه د خپل قوم
۸ د لور د پاره نور څه کولي شم ۸ د هغو ژبي د قاتل غشي په دود دي
هغه د مکر خبره کوي هر یو خپل ګاونډي ته په خولي سره سلام
۹ وايي لیکن په زړه کښ په پټولي کښ ورته غلي دي ۹ خداوند وايي
چه زه به په دغو کارونو هغوي ته سزا ور نه کړم څه ؟ له داسي
۱۰ قوم د څما روح بدله وانه خلي څه ؟ ۱۰ زه به د غرونو د پاره ژړا او وېر
وکړم او د بیابان د څراګاهو د پاره هَي هَي ځکه چه هغوي تر دي حده
وسول چه هیڅوک د هغو په لوري نه ورځي د چارپایانو آواز خلق
۱۱ نه اوري د آسمان مرغان ځروي ته و تښتیدل لاړ شول ۱۱ زه به اورشلیم
ډیري ډیري او د ګیدړو غارونه کړم او زه به د یهوداه ښهرونه تر

دي حده ويران کړم چه هيڅ او سيدونکي به پاتې نه شي
١٢ عقلمند سړي څوک دې تاچه دغه وپيژني او هغه څوک دې ١٢
چه دَ خداوند خولې ورته ويلي دِي چه دي دِ هغه ظاهر کړي چه
زمکه څه دپارَ ويرانه شوه او دَ بيابان په دود وسوه چه هيڅوک نه
تيريږي ١٣ خداوند داسي وايي دي دپارَ چه هغوي څما تورلت چه ما دَ ١٣
هغو دَ وړاندِ ينبي وه ترک کړي دي او څما آواز ئي وا نه وريده
او دَ هغه په موافق نه لاړل ١٤ بلکه هغوي دَ خپلو سرکښو زړونو او دَ ١٤
بعليم پيروِي وکړه لکه چه دَ هغو پلرونو او نيکونو دوي ته زده کړي وُو
١٥ دي دپارَ خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي فرمايي چه گوره ١٥
زه به په هغوي هو په دغه قوم مستياره وخوروم او دَ زهرو اوبه
به پړي وڅښنم ١٦ او زه به هغه په غير قومونو کښ چه هغوي نه دوي ١٦
نه دَ دوي پلرونو او نيکونو پيژاندل تار په تار کړم او يوه توره به ور
واستوم چه په دوي پسي شِي تر دي حده چه زه ئي نابود کړم ١٧ خداوند ١٧
دَ لښکرو داسي فرمايي چه فکر وکړئِ او وِير کوونکي ښځي را وبولئِ چه
راشي او دانا ښځو ته هم واستوئِ چه هغوي هم راشِي ١٨ او زر دِ شِي او ١٨
دَ مونږ دپارَ دِ ژړا پورته کړي چه دَ مونږ له سترګو اوښکي وبهيږي
او دَ مونږ له څيرمو اوبه په جوړجړ را ووزي ١٩ په يقين سره له صيحونَ دَ ١٩
ژړا آواز اوريده کيږي چه څنګه مونږ لوټ شولو مونږ سخت رسوا
شولو چه له وطن نه اوّاره شوِي يُو او هغوي دَ مونږ مسکونه نړولي
دِي ٢٠ اي ښځو تاسي دَ خداوند آواز واوريئِ او ستاسي غوږ دِ دَ ٢٠
هغه دَ خولې خبرِه قبوله کړي او تاسي خپلو لونړو ته وير کول ورزده
کوئِ او هره يوه دِ خپلي گوانډِي ته وير ورزده کړي ٢١ څکه چه دَ مونږ ٢١
په کړکيو کښ مرګ را وخوت او دَ مونږ په محلّونو کښ را ننه ووت
چه هلکان چه باهر دِي او ځوانان چه په کوڅو کښ دِي پري کاندي
٢٢ ووايئِ خداوند داسي فرمايي چه دَ آدميانو لاشونو به دَ ګندګي په ٢٢

دود په پېتيو پرانه وِي او دَ يو موټي دانو په شان چه پس له ريبلو
٢٣ دَ غلي پاتي ښي او هېڅوک به يې نه ټولوي ٢٣ خداوند داسي فرمايي
چه حکيم دِ پخپل حکمت فخر نه کوِي او زوراور دِ پخپل زور فخر
٢٤ نه کوِي او دولتمند دِ پخپل دولت فخر نه کوِي ٢٤ ليکن دي چه فخر
کوِي په دي دِ فخر کوِي چه پوهيږي او ما پېژني چه خداوند يم چه
په دنيا کښ رحمت او عدالت او صداقت کوم ځکه چه ځما خوښي هم
په دي ځيزونو کښ ده خداوند وايي
٢٥ ٢٥ ګوره هغه ورځي راځي خداوند وايي چه زه به هغوي ټولو ته
٢٦ چه ختنون دِي په نامختونِي کښ يې سزا ورکړم ٢٦ مصر ته او يهوداه
ته او ادوم ته او بني عمون ته او مواب ته او هغو ټولو ته چه دَ
ځنګونو ويښته پريکوِي چه په بيابان کښ اوسي ځکه چه دا ټول قومونه
نامختون دِي او دَ اسرائيل ټول ټبر دَ زړه نامختون دَي +

## لسم باب

١ آ اي دَ اسرائيل ټبر هغه کلام چه خداوند يې تاسي ته وايي واوريِ
خداوند داسي وايي چه تاسي دَ غير قومونو دستور مه زده کويِ او
دَ آسمان په نخښو مه حيران کيږيِ اګر که غير قومونه ورته حيران
٢ دِي ٣ ځکه چه دَ خلقو دَستور بطلان دِي ځکه چه ځوک وني له ځنګل
٤ نه په تبر پريکوِي نو هغه دَ کاريګر دَ لاسونو جوړ کړي کار دَي ٤ دوي
هغه په سپينو او سرو زرو سره آراسته کړي دوي په هغوي کښ
٥ په ټټکانو سره ميخونو ټک وهي چه هغه ونه خوځي ٥ هغوي دَ جوري
په دود سم سيخ دِي ليکن خبري نه کوِي البته ضرور دِي چه هغه
پورته کاندِ يو يې سِي ځکه چه هغه پخپله تللي نه شِي له هغو مه
ويريږيِ ځکه چه په هغوي کښ دَ ضرر رسولو توان نشته او نه په
٦ هغوي کښ دَ نيکي رسولو ٦ اي يهوه تا غندي هيڅوک نشته ته لوي
٧ يي او په قدرت کښ ستا نوم لوي دَي ٧ اي دَ قومونو بادشاه څوک دَي

چه له تا نه نه ویریږي ځکه چه دا تا لره لایقه ده ولې چه د قومونو
د ټولو حکیمانو په مینځ کښ او د هغو د ټولو د بادشاهتونو په مینځ کښ
ستا په شان هیڅوک نشته ۸ مګر هغوي ټول سره حیوانان او احمقان ۸
دي ولې چه دي خو د بطلانونو یو تعلیم دی ۹ له ترسیس هوارې کښې ۹
رکیبئ راوړي او له اوفاز نه سره زر د کاریګر کاریګري او د زرګر د
زرګرې دستکارې نیلي او ارغواني پوشاک ئې دی هغه ټول سره د هوښیارو
سړیو کاریګري دي ۱۰ لیکن خداوند رښتني الله دی دي ژوندي الله او ۱۰
ابدي بادشاه دی د ده له قهره زمکه رپیږي او قومونه د ده د غصې زغم
کولي نه شي
۱۱ تاسې هغوي ته داسي ووایئ چه هغه معبودان چه آسمانونه او ۱۱
زمکه ئې جوړ نه کړل له زمکې او د دې آسمانونه له لاندې به نیست شي -
۱۲ هم ده پخپل قدرت سره دنیا جوړه کړه هم ده پخپل حکمت سره جهان ۱۲
ودراوه او پخپلې عقلمندئ سره ئې آسمانونه غوړولي دي ۱۳ هغه وقت چه ۱۳
دي خپل آواز وکړي په آسمانونو کښ د اوبو کثرت وشي او دي د زمکې
له سرحدونو لړې پورته کوي دی له باران سره بریښنا هم جوړوي او
باد له خپلو خزانو را وباسي ۱۴ هر یو سړی جاهل دی د حیوان په دود ۱۴
شه هر یو زرګر له خپل بُت نه شرمنده کیږي ځکه هغه ویلي کړي صورت
دروغژن دی په هغو کښ ساه نشته ۱۵ هغوي باطل دي بلکه د مسخرې ۱۵
ځیز د سزا مندلو په وقت کښ به نابود شي ۱۶ د یعقوب برخه د هغو ۱۶
په شان نه ده ځکه چه هغه د ټولو ځیزونو صانع دی او اسرائیل
د هغه د میراث عصا ده خداوند د لښکرو ئې نوم دی
۱۷ اي ګیر شویو د قلې اوسیدونکیو خپل اسباب له زمکې جمع کړئ ۱۷
۱۸ ځکه چه خداوند داسي فرمایي چه زه به د زمکې اوسیدونکیو لره په ۱۸
دي وار کښ له مچوغنې به ئې وولم او تنګ به ئې کړم تا چه هغوي په
زړه سره معلوم کړي ۱۹ هې هې په ما باندې ځما د درد په سبب ځما زخم ۱۹

دردناک دَي لیکن ما ووِچه په یقین سره دا څما غم دَي او دَ هغه
۲۰ زغم کول مِ په کار دي ۲۰ څما خیمه لوټ کړي شوه او ټول طناونه مِ پریکړي
شول څما هلکان له ماځخه لاړل او موجود نه دِي او هیڅوک پاتي
۲۱ نه شول چه څما خیمه وغوړوِي اوڅما پردي ولګوِي ۲۱ ځکه چه شپانه
دَ حیوان په دود شول او هغوي خداوند لټولي نه دَي دي دَپارَ هغوي
۲۲ کامیاب نه شول او ټولي رمي ئي تار په تار شوي ۲۲ ګوره دَ غوغا آواز او
دَ لوي مقدمي آواز دَ قطب دَ ملک له لورِي راځي چه دَ یهوداه ښهرونو
به ویجاړ او دَ ګیدړو غارونه جوړ ښي
۲۳ ۲۳ اي خداوندَ زه پوهیږم چه سړي خپلي لاري یستلي نه ښي سړِي
۲۴ چه درومِي دَدوي په اختیار کښ نشته چه خپل قدمونه سم کړِي ۲۴ اي
خداوندَ ما ته تنبیه راکړه مګر په عدالت سره: نه په خپل قهر سره چه
۲۵ ورک مِ کړي ۲۵ اي خداوندَ په هغو قومونو چه تا نه پیژنِي او په هغو
ټبرو چه ستا نوم نه اخلِي خپل قهر توي کړه ځکه چه دوي یعقوب خوړلي
دَي او و ئي نغړد اوتالا ئي کړ اودَده دَ اوسیدلو ځاي ئي ویجاړ کړ +

## یولسم باب

۱ ۲ آ هغه کلام دَ خداوند چه ارمیاه ته ورسیده او ده ویل ۲ چه تاسي دَدِي
عهد خبري واورئِ او دَ یهوداه سړیو او دَ اورشلیم اوسیدونکیو ته
۳ و وایئِ ۳ او ته ورته ووایه خداوند دَ اسرائیل الله داسي فرمائِي چه
۴ په هغه سړي دِ لعنت وِي چه دَدغه عهد خبري نه اورِي ۴ چه ما
ستاسي پلرونو او نیکونو ته په هغي ورځ وفرمایلي چه دوي مِ دَ مصر
له زمکي دَ اوسپني له تنور نه په دي ویلو سره دَ باندِ راویستل چه
تاسي څما دَ آواز فرمان برداري کوئِ او هرڅه چه تاسي ته مِ حکم
درکړ عمل پرِ کوئِ نو به تاسي څما خلق شئِ او زه به ستاسي الله شم
۵ ۵ دي دَپارَ چه زه به په هغه قسم چه ما ستاسي له پلرونو او نیکونو
سره کړي دَي چه زه به تاسي ته یو ملک درکړم چه پئِ او ګبینه په کښ

بهیږي وفا وکړم لکه چه نن ورځ داسي دي نو ما په ځواب کښ وویل اي
٦ خداوندَ آمین٭ ٦ نو خداوند راته وویل چه دا ټولي خبرۍ دَ یهوداه په
ښهرونو کښ او دَ اورشلیم په کوڅو کښ منادي کړه او ووایه چه دَ دي
٧ عهد خبري واورئ او عمل پرِ وکړئ ٧ ځکه چه ما ستاسي په پلرونو او
نیکونو له هغي ورځي چه دوي مِ دَ مصر له زمکي نه راویستل تر نن
ورځي پوري په تاکید سره شاهدي وکړه زه صباح وختي پورته شوم هغوي
٨ ته مِ شاهدي وکړه او ورته ومِ ویل چه زما آواز واورئ ٨ مگر هغوي
نه منل او نه ئي خپل غوږونه ټیټ کړل بلکه هر یوه دَ خپل بد زړه
دَ ضد پیروي وکړه دي دَپارَ ما دَ دي عهد ټولي خبري چه ما ورته و
٩ ویلي چه په دغو عمل وکړئ او هغوي و نه کړ په دوي مِ راوستلي ٩ نو
خداوند راته وویل چه دَ یهوداه دَ خلقو او دَ اورشلیم دَ اوسیدونکو
١٠ په مینځ کښ فتنه مونده شي ١٠ دوي دَ خپلو پلرونو او نیکونو دَ بدیو په
لوري چه زما دَ خبر له آوریدلو ئي انکار وکړ وگرځیدل او دَ بیگانه وُ
معبودانو دَ خدمت دَپارَ ئي پیروي کړي دَه دَ اسرائیل ټبر او دَ یهوداه
ټبر هغه عهد چه ما دَ دوي له پلرونو او نیکونو سره تړلي دَي مات
١١ کړي دي ١١ دي دَپارَ خداوند داسي وائي چه گوره زه به په هغو داسي
بلا راولم چه ورنه تښتیدلي نه شي او هرڅو چه دوي ما ته را ناري
١٢ کړي مگر زه به ئي وانه ورم ١٢ نو دَ یهوداه ښهرونه او دَ اورشلیم
اوسیدونکي دِ ورشي او خپلو معبودانو ته چه دَ دغو دَ وړاندِ لُبان
سوځي ناري دِ وکړي مگر هغوي به ئي دَ غم په وخت کښ هیڅري خلاص
١٣ نه کړي ١٣ ځکه اي یهوداه هرڅوچه ستا ښهرونه دي همره ستا
معبودان وو: او هرڅوچه دَ اورشلیم کوڅي دِي هومره تاسو
دَ هغه مکروه څیز دَپارَ مذبحونه جوړ کړل دَ بعل مذبحونه چه په
١٤ هغو باندِ دَده دَپارَ لُبان وسیځي ١٤ ځکه ته دَ دي قوم دَپارَ دُعا
مه غواړه او مه دَ دوي دَپارَ آواز او مه دعا کوه ځکه چه دوي دَ خپلي

١٥ تنګي په وقت ما ته را ناري کړي زه به ئي وانه ورم ١٥ ځما په کور کښ
ځما دَ محبوب څه کار دَي په هغه حال کښ چه دي له ډيرو سره
مستي کړي دَه او پاکي غوښي له تا نه لاړلي چه تا بدکاري کړلي نو به
١٦ ته خوښ دي ١٦ خداوند ستا نوم دَ بوه زرغونه زيتون ونه چه ميوه
ئي ښائسته دَه وباله دَ لويي مقدّمي دَ آواز سره ده په هغي باندِ اور
١٧ ولګاوه او دَ هغي ښاخونه مات شول ١٧ ځکه چه خداوند دَ لښکرو
چه ته ئي ولګولي دَ بلا حکم ئي دربانډِ وکړ دَ هغي بدکاري په سبب
چه دَ اسرائيل ټبر او دَ يهوداه ټبر په خپل مخالفت کښ وکړه دَ بعل
١٨ دَ وړاندِ ئي لُبان و سيځل دي دَ پارَ چه ما په غصّه کړي ١٨ خداوند
په ما ظاهر کړل او زه په دي وپوهيدم پس له هغه دِ دَ هغو کار
١٩ را وښود ١٩ زه دَ يو اصيل وري په شان وم چه دَ حلاليدلو دَ پارَ
را ووست شِي او ما ته معلوم نه وه چه هغوي ځما په خلاف فکرونه
وکړل چه مونږ دِ ونه له ميوي سره نيست کړو او مونږ دَ هغه دَ ژوندي
٢٠ له زمکي پريکړو دي دَ پارَ چه دَ هغه نوم بيا ذکر نه شِي ٢٠ مګر اي
خداونده دَ لښکرو چه په صداقت سره عدالت کوي چه پښتورګي او
زړه آزمايي هغه بدله چه ته به ئي ورنه واخلي زه به ئي هم ووينم
٢١ ځکه چه ما خپله دعویٰ ستا دَ وړاندِ ظاهره کړه ٢١ دي دَ پارَ خداوند
داسي وايي چه دَ عنتوت دَ سړيو په باب چه په دي ويلو ستا دَ
ځان غوښتونکي دِي چه دَ خداوند په نوم باندِ نبوّت مه کړه هسي
٢٢ نه وِي چه ته ځمونږ له لاس نه مړ شي ٢٢ دي دَ پارَ خداوند دَ
لښکرو داسي وايي چه ګوره زه به هغو ته سزا درکړم ځوانان به
٢٣ په توري مړه شِي دَ هغو ځامن او لونړي به په قحط مړه شِي ٢٣ او
له هغو به هيڅوک پاتي نه شِي ځکه چه زه به دَ عنتوت په سړيو
دَ هغو دَ سزا په کال کښ آفت راولم ٭

# دولسم باب

۱ اي خداوندَ ته صادق يي هركله چه زه له تا سره دعویٰ وكړم هو ما ۱
ته اجازت راكړه چه دَ حق مقدمو په باب له تا سره خبري وكړم څله شريران
خلق پخپلي لاري كښ كامياب كيږي هغوي ټول چه په ټګي كار كوي څله
په خوشحالي سره اوسي ۲ هغوي تا لګولي دي او بېخ ئې هم نيولي دي دوي ۲
لوي شول ميوه ئې هم راوړه ته دَ دوي خولو ته نژدې يي مګر له پښتورګو ئي
لري يي ۳ ليكن ته اي خداوندَ ما پيژنې زه دِ وليدلم او زما زړه چه ستا ۳
په لوري دي آزمايلي دِ دي ته هغوي دَ ګډو په دود و حلالولو ته و باسه
هو دَ وژلو دَ ورځي دَپارَ ئي خاص كړه ۴ ترڅو پوري دِ زمكه ژړا كوي او دَ ۴
ټول ملک سبزي دِ مړاوي شي دَ هغو دَ پليتي په سبب چه په زمكي كښ
اوسي ځناور او مرغان هلاک شول ځكه چه هغوي وويل چه به زموږ
تماميدل و نه ويني ۵ كه ته له پياده تلونكيو سره زغليدلي يي او ته ئي ستړي ۵
كړي نو په تا كښ طاقت څرنګه دي چه دَ آسونو سره برابري وكړي او كه ته
دَ سلامتي په زمكي كښ سُست يي نو دَ اردن په لوي كښ به څه كوي -
۶ لكه چه ستا ورونړو او ستا دَ پلار كور هم له تا سره بيوفائي كړي ده ۶
هو هغوي په تا پسي ناري وكړي په هغو اعتقاد مه لره اګر كه دوي
پستي خبري درته وكړي

۷ ما خپل كور پريښود ما خپل ميراث وغورزوه ما خپل محبوب ۷
دلدار دَده دَ دښمنانو ولاسو ته وسپاره ۸ زما ميراث زما دَپارَ داسي ۸
شه لكه چه ببر زمري په ځنګل وي هغه په ما باند په لوي آواز سره
غرچيږي ځكه زه نفرت ورنه كوم ۹ زما ميراث زما په حق كښ داسي دي لكه ۹
چه مرداري خوړونكي برګ پرنده دي څه؟ دَ ځنګل مرداري پرندګان دَ هغه
په څلورو خواؤ په هغه باند دي څه؟ راشئ ټول درندګان دَ صحرا راټول
كانړئ هغوي راولئ چه و ئي خوري ۱۰ ډيرو شپنو زما تاكستان خراب كړ ۱۰
هغوي زما حصّه پايماله كړه زما له ښائسته حصّي ئي ويجا بيابان جوړ

١١ کړ ١١ دوي هغه ویرانه کړه هغه. ویرانه شوه ما ته فریاد کوي ټوله زمکه ویرانه
شوه نو هم هیڅوک دَ هغه فکر په زړه کښې نه ږدي
١٢ ١٢ دَ بیابان په ټولو اوچتو ځایونو کښې لوټیري راغلي دي ځکه چه دَ
خداوند توره به دَ زمکي له هغه سر نه تر دې سره پوري ونغري او هیڅ بشر ته
١٣ به سلامتي نه وي ١٣ هغوي غنم کرلي دي مګر اغزي ئي ټول کړي دي هغوي
په مشقت ځان ستړي کړ لیکن فائده ئي موندلي نه ده هو تاسو له خپلو
پیداوارو شرمنده شئ دي دَپارَ چه دَ خداوند قهر ګرم شه
١٤ ١٤ ځما دَ ټولو ګوانډیانو په مخالفت چه دغو هغه میراث مسه
کړ چه دَ هغه وارث مې خپل قوم اسرائیل کړ خداوند داسي وایي ګوره
زه به هغوي دَ هغو له زمکي وکاږم او دَ یهوداه ټبر به دَ هغو له مینځ
١٥ نه راوکاږم ١٥ او پس له هغه چه زه دوي وکاږم داسي به وشي چه
زه به بیا په هغو باندِ رحم وکړم او هر یوه ته به دَ هغه په میراث
١٦ کښې او هر یو به دَ هغه په زمکي کښې بیرته راولم ١٦ او داسي به وشي
چه که هغوي په زړه سره ځما دَ خلقو لاري زده کړي چه ځما په نوم قسم
خوري چه خداوند ژوندي دَی لکه چه هغوي ځما خلقو ته ورزده کړل
چه دَ بعل قسم خوري نو هغوي به ځما په خلقو کښې آباد به شي
١٧ او که اوریدونکي نه شي نو زه به هغه قوم بیخي وکاږم هو زه به هغه
وکاږم او نیست او نابود به ئي کړم خداوند فرمایي +

## دیارلسم باب

١ ١ خداوند ما ته داسي وفرمایل چه ته لاړ شه دَ خپل ځان دَپارَ یو کتاني
٢ کمربند واخله او په ملا ئي وتړه لیکن په اوبو کښې ئي مه ننه باسه ٢ نو ما
دَ خداوند دَ کلام سره موافق یو کمربند واخست او په خپلي ملا مي وتاړه
٣ ٣ او دَ خداوند کلام دوباره ما ته راورسیده او ده ووئیل چه دغه کمربند
چه تا واخست او چه پخپلي ملا دِ وتاړه وائي خله پورته شه او فرات
٥ نه لاړ شه او هلته کښې ئي دَ کمرهٔ په یوه چاوون کښې پټ کړه ٥ نو زه

لاړم او هغه مې دَ فرات په غاړي پټ کړ لکه چه خداوند را ته فرمائلي
وه ۶ او پس له ډیرو ورځو داسي وشول چه خداوند راته .ووېل چه ۶
پورته شه فرات ته لاړ شه او هغه کمربند چه ځما په حکم دِ هلته
کښ پټ کړي دي وا ئي‌خله ۷ نو زه فرات ته لاړم او و مې کنود او کمربند ۷
مې له هغه ځاي نه چه په کښ مې پټ کړي وه را واخست اوګوره کمربند
داسي خراب شه چه دَ هیڅ کارلایق نه وه ۸ نو دَ خداوند کلام چه دا ۸
ئي ویل ما ته را ورسیده ۹ چه خداوند داسي وایي چه په دي شان به دَ ۹
یهوداه غرور او دَ اورشلیم لویه مغروري خرابه کړم ۱۰ دا بد خلق چه ۱۰
ځما دَ کلام له اوریدلو انکار کوي او دَ خپل زړه دَ سرکښي پیروي کوي
او په بېګانه معبودانو پسي شوي خدمت ئي کوي او هغوي ته عبادت
کوي دَدي کمربند په دود به شي چه دَ هیڅ کار نه وي ۱۱ ځکه لکه چه ۱۱
کمربند دَ سړي په ملا پوري نښتي وي هم هسي خداوند وايي چه دَ
سرائیل ټول ټبر او دَ یهوداه ټول ټبر مې له ځان سره ونښلاوه تا چه
دوي ځما امت شي او دَدوي په سبب ځما نوم او ځما ثنا او ځما جلال
وکړي شي مګر دوي مې نه واوریــــــــــدل
۱۲ نو هغوي ته دا کلام هم ووایه چه خداوند دَ اسرائیل الله ۱۲
داسي وايي چه هر یو ژَي به له شرابو ډک شي او هغوي به تا ته وايي چه
مونږ په یقین سره په دي نه پوهیږو چه هر یو ژَي به له شرابو
ډک شي څه ؟ ۱۳ نو ته هغوي ته ووایه چه خداوند داسي وايي زه به ۱۳
دَدي زمکي ټول اوسیدونکي هو هغه بادشاهان چه دَ داؤد په تخت
باندِ کښېني او کاهنان او نبیان او ټول اوسیدونکي دَ اورشلیم له
نشي نه به ئي ډک کړم ۱۴ او زه به له هغوي نه یو به بل باندِ زامن ۱۴
او پلرونه یو ځاي سره وغورزوم خداوند وايي زه به شفقت و نه کړم
او له سره به صرفه ونه کړم او رحم به دَ هغو په هلاک کولو کښ ونه کړم
۱۵ هو واوریِ او غوږونه کیږدي غرور مه کويِ ځکه چه خداوند ۱۵

۱۶ فرمايلي دِي ۱۶ تاسو دَ خداوند الله خپل تمجيد کوئِ وړاندِ له هغه نه چه
تارکِي راورِي او وړاندِ له هغه نه چه ستاسي پښي په تاريکو غرو باندِ
ټيندک وخورِي اوچه تاسي دَ رڼا انتظار کوئِ نو دي هغه دَ مرګ
۱۷ په سيورِي بدلوِي او تکه توره تياره ئِي جوړوِي ۱۷ لېکن که تاسي نه واورِئ
نو زما ځان به ستاسي دَ غرور په سبب په کوټو کښې غم خورِي هو ځما
سترګي به په ژړا وزارِي او اوښکي به بهوِي ځکه چه دَ خداوند رمه
۱۸ په بند بيايِي ۱۸ بادشاه اوملکي ته ووايِ چه کوز شئ کښينئِ ځکه چه
۱۹ ستاسي دَ بزرګِي تاج به ستاسي له سر نه کوز شِي ۱۹ دَ سهيل ښهر
بند شه او هيڅوک ئِي نه خلاصوِي دَ يهوداه زامن ټول بنديان شول
۲۰ ټول ئِي په بند بوتلل ۲۰ خپلي سترګي پورته کړئِ او هغوي چه له شمالَ
راځي و ئِي ګورئِ هغه رمه ستا چه تا ته درکړي شوي وه ستا ښائسته
۲۱ رمه چرته دَه ؟ ۲۱ هغه وقت چه په تا باندِ هغه سردار وګمارِي چه تا
تعليم ورته کړي دَي اوچه ستا ياران وُو نو ته به څه وايِي چه په تا
به دَ هغي سختِي په شان چه دَ لنګانه درد ئِي وِي درد نه ولګي څه ؟
۲۲ ۲۲ او که نه پخپل زړه کښې ووايِي چه دا پېښي په ما باندِ ځله راغلي
ستا دَ بدِي له سختِي نه ستا لمن پورته کړي شوه او ستا پښئِ بِيادبي
۲۳ شوي ۲۳ کوشِي سړِي به خپله څرمن يا به پړانګ خپل داغونه بدل کړي
شِي څه ؟ نو هم تاسي نېکي کولي شئِ چه په هغي کښې مو دَ بدِي کولو
۲۴ عادت شوي دَي ۲۴ دي دَپارَ به زه هغوي دَ هغه خس په شان چه
۲۵ دَ بيابان له باد نه تيرېږِي تار په تار کړم ۲۵ خداوند وايِي چه ځما له
لورِي هم دغه ستا هسک دَي ستا پيوندلي بخره دَه چه زه دِ هير
۲۶ کړي يم او په دروغ دِ تکيه کړي دَه ۲۶ اوزه به پخپله هم ستا لمن
۲۷ ستا په څهري درو غورزوم چه ستا ستر وليدي شِي ۲۷ ستا زناکارئِ
او ستا ششنېدل او ستا حرامکارئِ او ستا دَ زنا مستِي چه په
غونډيو او په ورشو وکې ټول مِ ليدلي دِي اي اورشليمَ هئ هئ

په تا باندِ ته به ترخو پوري پاک کړي نه شي ❊

## څورلسم باب

۱ آهغه کلام دَ خداوند چه دَ وچ کالي په باب ارمیاه ته ورسیده
۲ یَهوداه وِیرکوِي او دروازي ئي ضعیفي کیږي هغوي دِ وِیر پوشاک اغوستي
۳ په زمکه کښېني او دَ اورشلیم ناره پورته شوه ۳ دَ هغو امیرانو خپل
وړوکي د اوبو دَپارَ واستول هغوي تالاؤنو ته ورتلل مګر اوبه ئي نه
موندلي له تشو کړیو سره بېرته راغلل دوي پښیمان او حیران کیږدل دوي
۴ خپل سرونه پټول ۴ دي دَپارَ زمکه وچاوده څکه چه په زمکه باران
۵ نه اوریده کشیان شرمنده شول خپل سرونه ئي پټ کړل ۵ هو
هوسئي هم په صحرا کښ لنګه شوله او خپل بچيَ پریښود څکه چه واښه
۶ نه وه ۶ او ګورخران په اوچتو ځایونو ولاړ اوسیدل او دَ هغو ګیدړو
په دود چه په باد سا اخلي سترګي ئي ضعیفي شولي څکه چه واښه
۷ نشته ۷ اګرکه څموږ بديَ په موږ ګواهي ورکوي نو هم اي خداوندَ دَ
خپل نوم دَپارَ عمل وکړه څکه چه ګرزیدني څموږ ډیري دي موږ ستا
۸ ګنهکاران یُو ۸ اي دَ اسرائیل امیدَ اي دَ سختي په وقت کښ ئي
خلاصونکي ته په مُلک کښ څله دَ مسافر په شان شوي او دَ هغه
۹ تېریدنکي په دود چه کیږدي ودروِي چه یوه شپه په کښ تیروي ۹ ته
ولي دَ سړيَ په دود هک پک يي او دَ هغه بناغلي په دود چه خلاصي
ورکولي نه شي په هرحال سره اي خداوندَ ته خو څموږ په منځ کښ يي
۱۰ او موږ ستا په نوم بللي شو ته مو مه پرېږده ۱۰ خداوند دي اُمّت
ته داسي فرمايي چه هغوي په ګمراهي داسي مینه کړي ده چه خپلي پښي
ئي ورنه بندي نه کړي دي دَپارَ ئي خداوند نه قبولوي اوس به ئي
۱۱ بدکاري په یاد کړي او دَ ګناهونو سزا به ئي ورکړي ۱۱ او خداوند را ته
۱۲ و فرمایل چه دَ دي قوم دَپارَ دُعا مه غواړه چه دَ دوي خیر وِي ۱۲ هر
کله چه دوي روژه ولري نو زه به دَ دوي ناره وا نه ورم او چه دوي

سیځونکي قربانۍ او هدیې تیري کړي زه به ئې قبولي نه کړم بلکه په توري
او په قحط او په وبا سره به ئې هلاک کـــــــــــــــړم
۱۳ ۱۳ نو ما وویل هاي اي خاوند یَهْوَهْ گوره نبیان هغوي ته وایي
چه تاسي به توري و نه وینئ او په تاسي به قحط رانه شي بلکه په دې
۱۴ مکان به تاسي ته رښتني سلامتي درکړم ۱۴ نو خداوند ما ته ووې چه نبیان
ځما په نوم دروغ نبوّت کوي نه مې هغوي استولي دي او نه مې حکم
ورکړي دی نه مې دوي ته ویلي دي دروغ رؤیا او فالبیني او بې اصلَ
۱۵ خبري او دَ خپلو زړونو مکارۍ نبوّت کوي ۱۵ دې دَپارَ خداوند داسي وایي
دَ هغو نبیانو په باب چه ځما په نوم سره نبوّت کوي او چه ما استولي
نه دي او چه وایي چه توري او قحط به په دې زمکي نه وي هم دغه
۱۶ نبیان به په توري او قحط هلاک کړي شي ۱۶ او هغه خلق چه دوي
نبوّت ورته کوي نو هغوي به دَ قحط او دَ توري په سبب دَ اورشلیم په
کوڅو کښې وغورزول شي دوي او دَ دوي ښځې او دَ دوي زامن او دَ دوي
لوڼي او دَ دوي ښخونکي به هیڅوک نه وي ځکه چه زه به دَ هغو بدي به
۱۷ هغو توي کړم ۱۷ او ته به دا کلام هغوي ته ووایې چه ځما سترګي شپه او ورځ
اوښکي بهوي او هرگز نه تم کیږي ځکه چه ځما دَ اُمّت پیغله لور په
۱۸ لوي ماتیدلو سره په ډیر زخم سره ماته شوله ۱۸ که زه یاهر پټيي ته
لاړ شم نو گوره هلته کښې دَ توري وهلي دي او که زه په ښهر کښې
داخل شم نو گوره هغوي دي چه له قحطَ سوليږي هو نبي او کاهن
په زمکه کښې گرزي او هیڅ نه پوهیږي
۱۹ ۱۹ تـــــــــــــا یـــهوداه بالکلّ ترک کړه؟
ستا ځان له صیحونَ بالکلّ نفرت کوي څه ؟ تا مونږ څله ووهلو او ځمونږ
دَپارَ شفا نشته مونږ دَ سلامتي لار کتله او خیر هیڅ نشته او
۲۰ دَ صحت موندلو دَ وقت مگر گوره ویره ۲۰ اي خداوندَ مونږ پخپلي بدي
او دَ خپلو پلرونو او نیکونو په بدي اقرار کوو ځکه چه مونږ ستا گناه

۲۱ کړي دَه ۲۱ دَ خپل نامه دَپارَ موږ مه رد کوه اوخپل جلالي تخت مه بي‌عزت
۲۲ کوه او له موږ سره وعده مه ماتوه یاده يې کړه ۲۲ دَ غیر قومونو په
بطلانونو کښې څوک شته دَي چه باران اوورولې شي یا آسمانونه اوبه
ورکولې شي اي خداوندَ څمونږ الله ته هغه نه يې څه؟ دې دَپارَ به موږ ستا
په انتظار کښې اوسو څکه چه هم تا دا ټول کارونه کړي دِي ÷
۲

# پنځلسم باب

۱ آ نو خداوند ما ته وُوِ چه اګر که موسيٰ او شموئیل به څما په حضور
ودریدل نو هم څما خان دَدې قوم په لورې نه دَي څما له وړاندِ نه
۲ وباسه چه لاړ شي ۲ او داسې به وِي چه دوي تا ته ووايي چه موږ
چرته لاړ شُو نو ته ورته ووایه چه خداوند داسې فرمايي چه هغوي چه
دَ مرګ دَپارَ دِي نو مرګ ته او هغوي چه دَ توري دَپارَ دِي توري ته او
۳ چه دَ قحط دَپارَ دِي قحط ته اوچه دَ بند دَپارَ دِي بند ته ۳ اوزه
به په هغو باندِ څلور قسمَ قسمونه نازل کړم خداوند فرمايي توري چه
قتل کوِي او سپي چه وئي څیري او آسماني پرندګان او دَ زمکي درندګان
۴ چه وئي نغري او هلاک ئي کړي ۴ او زه به هغوي دَ یهوداه دَ بادشاه
منسّي بن حزقیاه په سبب او دَ هغه کار به وسیلي چه ده به اورشلیم
کښې کړي دَي دوي به دَ زمکي په ټولو ملکونو کښې کړیدلو ته ورکړم
۵ ۵ اي اورشلیم څوک به په تا شفقت وکړِي څوک به ستا دَپارَ وِر وکړِي
یا څوک به ستا په لورې درشي چه ستا خیر او سلامتي وپوښتِي -
۶ ۶ تا زه ترک کړي یم خداوند فرمايي ته په وروستو ګرزیدي دِي دَپارَ
به زه په تا باندِ خپل لاس اوږد کړم او تا به برباد کړم له پښیماني
۷ ستړي یم ۷ او ما هغوي دَ ملک په دروازو کښې بوري باد کړي دِي ما
دَ هغو بچي راشکولي دِي ما خپل قوم هلاک کړي دَي څکه چه دوي له
۸ خپلو لارو ونه ګرزیدل ۸ دَدوي کونډي څما دَ وړاندِ دَ سمندر له شګو
نه زیاتي شولي ما دَ غرمي په وقت دَ څوانانو په مور باندِ یو لوټیري

۹ مسلّط کړ ما په هغو باندِ ناڅاپه عذاب او ترس اچولي دَي ۹ هغه
چه اوه ئي زيږولي دِي ضعيفه شوه هغې ځان ورکړي دي ورځ لا شته
دَ هغې نمر ډوب شه هغه پريشانه او سرګردانه شوي ده خداوند
وايِي چه زه به دهغې باقي خلق دهغې د دښمنانو وړاندِ وتوريِ ته وسپارم
۱۰ ۱۰ هَي هَي په ما باندِ اي ځما موري چه زه دِ په ټولي زمکي کښې
يو فسادي او جنګيالي سړي وزيږولم ما خو نه په سود پور ورکړي دَي او
نه مِ پور اخستي دَي نو هم له خلقو نه هر يو په ما باندِ لعنت وايِي
۱۱ ۱۱ خداوند ووئيل چه يقين سره به دِ زه دَ نيکي دَپارَ خلاص په يقين
سره زه به دَ غم په وقت او دَ تنګي په وقت دښمنان ستا تا ته زاري کونکي
۱۲ ۱۳ کړم ۱۲ اوسپينه دَ شمال اوسپينه او زيړ ماتولي شِي څه؟ ستا مال ۱۳ او
ستا خزاني به لوټ ته ورکړم دَ قيمت دَپارَ نه مګر ستا دَ ټولو ګناهونو
۱۴ دَپارَ به ستا په ټولو سرحدونو کښې ۱۴ او زه به په تا باندِ ستا دَ دښمنانو
خدمت وکړم په يوه ملک کښې چه ته ئي نه پيژني ځکه چه يو اور به
ځما دَ قهر بل شِي چه هغه به په تاسي باندِ بل کړم
۱۵ ۱۵ اي خداوندَ ته په دي پوهيږي ما په ياد کړه او خبر مِ واخله
او ځما له ربړونکيو ځما بدله واخله ته مِ پخپل اوږد زغم سره بيايه پوه
۱۶ شه چه ما ستا دَپارَ ملامت اخستي دَي ۱۶ ستا خبري وموندلي شوي
او ما هغه وخوړي او ستا خبري ځما دَ زړه خوښي او خوشحالي وه ځکه
۱۷ اي خداوندَ دَ لښکرو زه ستا په نوم بللي شم ۱۷ زه دَ خندا کونکو په
مجلس کښې نه کښيناستم نه مِ خوښي وکړه ستا دَ لاس په سبب زه
۱۸ تنها کښيناستم ځکه چه تا زه په خپل قهر سره ډک کړي يم ۱۸ ولي ځما
غم دائمي دَي او پرهار مِ لاعلاج چه نه جوړيږي؟ ته ځما دَپارَ ټول سره
۱۹ دَ دروغو دَ وياللي غوندِ يي دَ هغو اوبو په دود چه نه دريږي ۱۹ دي دَپارَ
خداوند داسي فرمايِي چه که ته وګرزي نو زه به دِ بيرته راوګرزوم او
نه به ځما په حضور ولاړ يي او که ته قيمتي له ناکاره جُدا کړي نو ته به

ځما دَ مخ په دود شي هغوي دِ ستا په لوري وګرزي مګر ته دَ هغوي په
۲۰ لوري مه ګرزه ۲۰ او زه به دِ دَدي قوم په مقابل دَ زيرو مضبوط ديوال
کړم او هغوي به له تا سره وجنګيږي ليکن په تا باندِ به غالب نه شي
۲۱ ځکه چه خداوند وايي زه به تا سره يم چه آزاد او خلاص دِ کړم ۲۱ زه به تا ته
دَ بدکارانو له لاس نه خلاصي درکړم او دَ ظالمانو له پنجي به دِ آزاد کړم *

## شپاړسم باب

۱ ۱ دَ خداوند کلام په ما باندِ نازل شه او وئي ويل ۲ چه ته دَ خپل ځان
دَ پاره ارتينه مه کوه او نه دِ زامن نه دِ لوڼي ستا په دي مکان کښ وِي
۳ ۳ ځکه چه خداوند دَ هغو زامنو او لوڼو په باب چه په دغه مکان کښ
زيږي او دَ هغو دَ ميندو په باب چه دَدوي زيږونکي وِي او دَدوي دَ
۴ پلارونو په باب چه دوي ئي په دي زمکه کښ وزيږول داسي وايي ۴ چه
دوي به په هلاکونکيو مرضونو مړه شِي او هيڅوک به وير پري ونه کړي
او دوي به ښخ کړي نه شِي دوي به دَ سري په دود دَ زمکي په مخ باندِ
پراته وِي په توري او په قحط به هلاک کړي شِي او دَدوي مړي به
۵ دَ آسمان دَ مرغانو او دَ زمکي دَ درندګانو خوراک شِي ۵ په يقين سره
خداوند داسي فرمايي چه ته دَ وِير کور ته مه ورننوزه او نه په
هغو باندِ ژړا کولو ته ورشه او مه دَدوي وِير کوه خداوند فرمايي چه
ما خپله سلامتي يعني مهرباني او رحمتونه له دي قوم نه لري کړي دي
۶ ۶ او په دي ملک کښ به لوي او واړه: دواړه مړه شِي او ښخ به کړي
نه شِي او خلق به په هغو وير و نه کړي او هيڅوک به دَدوي دَ پاره ځيري
۷ نه کړي او نه په خپل سرونه وخريي ۷ او خلق به دَ وِير ژړلو دَ پاره دوئي
ماته نه کړي چه دوي ته دَ مړيو په باب تسلي ورکړي او دوي ته به
دَ خاطرداري پياله ورنه کړي چه دوي ئي دَ خپل مور او پلار دَ پاره
۸ وڅښي ۸ او ته ميلمستيا کور ته مه ورننوزه چه له دوي سره کښيني
۹ وخوري او وڅښي ۹ ځکه چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي

فرمايي چه زه به په دي مکان کښ ستاسي له سترګو او ستاسي په
ورځو کښ دَ خوشحالي آواز او دَ ښادي آواز دَ زلمي او دَ ناوي آواز
موقوف کړم
١٠ ١٠او داسي به وشي هرکله چه ته دا ټولي خبري په دي قوم ظاهري
کړي او دوي به تا ته ووايي چه خداوند څله دا ټول لوي شر څمونږ
په خلاف ويلي دي څمونږ څه بدي او څمونږ څه خطا دَه چه مونږ
١١ دَ خداوند خپل الله په باب کړي دي ١١نو به ته هغوي ته ووايي
دي دَپارَ خداوند وايي چه ستاسي پلرونو او نيکونو زه پريښودلم او دَ
بيګانه معبودانو پيروي ئي کړي دَه او دَ هغو خدمت او عبادت ئي
کړي دي او زه ئي ترک کړي يم او څما په تورات ئي عمل کړي نه دي
١٢ ١٢او تاسو له خپلو پلرونو او نيکونو هم بدتر کارونه کړي دي څکه ګوري
له تاسو نه هر يوه دَ خپل بد زړه دَ سرکښي په موافق دروي چه
١٣ څما نه اوري دي ١٣دَپارَ به زه تاسو له دي زمکي و باسم په داسي ملک
کښ چه هغه نه تاسي او نه ستاسي پلرونو او نيکونو پيژاند او هلته
کښ به تاسي شپه او ورځ دَ بيګانه معبودانو بندګي وکړئ څکه چه
هلته کښ به دَ تاسي خيرخواهي و نه کړم
١٤ ١٤نو هم ګوره هغه ورځي راځي خداوند وايي چه په هغو کښ
به خلق هيڅري و نه وايي چه خداوند ژوندي دَی چه بني اسرائيل ئي دَ مصر
١٥ له زمکي نه باهر راويوست ١٥بلکه خداوند ژوندي دَی چه بني اسرائيل
ئي دَ شمال له زمکي نه او له هغو ټولو ملکونو چه هلته کښ ئي دوي
شړلي وُو راويستل څکه چه زه به هغوي په هغي زمکي کښ چه ما دَ
هغو پلرونو او نيکونو ته ورکړي وه بيرته راولم
١٦ ١٦ګوره زه به ډيرو ماهي ګيرانو ته (خبر) واستوم خداوند
وايي او هغوي به ئي کښيباسي او پس له هغه به زه ډيرو ښکاريانو
ته (خبر) واستوم او هغوي به ئي له هر غره او له هري غونډۍ نه

او دَ کمرونو له سوربو نه ښکار کوي ۱۷ ځکه چه زما سترګي دَ هغو ۱۷
په ټولو لارو دِي هغوي زما له ځهري نه پټ نه دِي او دَ هغو بدِي
زما له سترګو پټه نه ده ۱۸ او زه به ورومبي دَ هغو دَ بدِي او دَ ۱۸
خطاکارِۍ سزا دوه ګونه ورکړم ځکه چه هغوي زما زمکه دَ خپلو
مکروه څيزونو له مړيو نه ناپاکه کړه او هغوي زما ميراث له خپلو
پليتو څيزونو ډک کړي دي ۱۹ اي خداوندَ ته چه زما قوت او زما قلا ۱۹
يي او دَ سختِي په ورځ کښ مِ پناګاه يي دَ دنيا له کنارونه به غير
قومونه تا ته راشِي او و به وايِي چه په حقيقت سره دَ مونږ پلرونو او
نيکونو دروغ او دَ بطلان دَ بي‌فائدي څيزونه په ميراث واخستل -
۲۰ انسان به دَ ځان دَپارَ خدايان جوړ کړِي او هغه خدايان نه دِي ۲۱ دي ۲۰، ۲۱
دَپارَ ګوره زه به په دي وار هغوي خبر کړم زه به خپل لاس او خپل
زور هغوي ته ور معلوم کړم او دوي به پوه شِي چه يَهُوَهْ زما نوم دَي*

# اوه‌لسم باب

۱ دَ يهوداه ګناه دَ اوسپني په قلم او دَ الماس په څوکي ليکلي شوي ده ۱
دَ هغو دَ زړونو په تختِۍ باندِ او دَ هغو دَ مذبحونو په ښکرونو باندي
کنودلي دِي ۲ ځکه چه دَ دوي زامن دَ شنو ونو څخه او په اوچتو غرونو ۲
باندِ خپل مذبحونه او اشريم په ياد کوِي ۳ اي زما غره چه په ميدان ۳
کښ يي ستا مال او ستا ټولي خزانِي او ستا اوچت مکانونه چه هغوِي
دِ په خپلو ټولو سرحدونو کښ دَ ګناه دَپارَ جوړ کړِل زه به ئي لوټ ته
ورکړم ۴ او ته به پخپله له هغه ميراث نه چه تانه مِ درکړ دَ خپل ۴
قصور په سبب لاس واخلِي او زه به په هغي زمکي کښ چه ته ئي
نه پيژنِي له تا نه به ئي ستا دَ دښمنانو په خدمت کښ کړم ځکه تاسي
زما دَ قهر اور مو بل کړ چه تر هميشه پوري به بليږِي
۵ خداوند داسي وايِي لعنت په هغه سړي دَي چه په انسان ۵
باندِ باور کوِي او بشر خپل وزر ګنزِي. او دَ هغه زړه له خداوند نه

۶ لړي کیږي ۶ ځکه چه هغه به دَ لغړبوتي په شان چه په بیابان کښ وِي
او نیکي هغه وقت چه راشِي نه به يُي ووينِي لیکن دَ صحرا په وچو بي اوبو
مکانونو کښ او په تاروه زمکه کښ به اوسِي چه په هغي کښ هيڅوک
۷ اوسیدونکي نه وِي ۷ مبارک هغه سړَي دَي چه په خداوند توکّل کوِي
۸ او چه دَ امید (ځاي) يُي خداوند دَي ۸ ځکه چه هغه به دَ هغي وني په
دود وِي چه دَ اوبو په غاړه ولګولي شِي او ولبي خپلي دَ درياب په لوري
وغوړوِي او چه ګرمي راشِي نو دا نه ویریږي بلکه پاڼي يُي زرغوني اوسِي
او له وچه کاله په اندیښني کښ نه وِي او له میوي راوړلو نه نه منع کیږي
۹ ۹ زړه له ټولو څيزونو نه زيات حيله باز دَي هو دغه لاعلاج مرض دَي
۱۰ څوک يُي معلوم کولي شِي ۱۰ زه خداوند زړه آزمايم او ګُردي ګوره کوم دي
دَپارَ چه هر سړِي ته دَده دَ عمل په شان او دَده دَ کارونو دَ میوي
۱۱ په موافق بدله ورکوم ۱۱ لکه چه سنځري په (پردیو) باندِ کښيني چه ده
کړي نه وِي هم هسي هغه چه په بي انصافي سره دولت حاصل کوِي
نو هغه به يُي دَ خپل عمر په منځ کښ ورک کړي په آخر کښ به احمق
وِي
۱۲ ۱۲ یو جلالي تخت له ابتدا نه اعلیٰ کړي شوي ځموږ دَ مقدّس مکان
۱۳ دَي ۱۳ اي خداوندَ دَ اسرائیل امیدَ هغوي ټول چه تا ترکوِي شرمنده
به شِي او هغوي چه ما پرېږدِي په دنیا کښ به ولیکل شِي ځکه چه
۱۴ هغوي خداوند چه دَ ژوندانه دَ اوبو چینه دَي ترک کړي دَي ۱۴ اي خداونده
ما جوړ کړه نو به زه جوړ شم ما خلاص کړه نو به زه خلاص شم ځکه
چه تـه ځمـا ثنـا يـي
۱۵ ۱۵ ګوره هغوي ما ته وايِي چه دَ خداوند کلام چرته دَي هغه دِ
۱۶ راشِي که نه ۱۶ ما خو ستا په پیروِي کښ خپل ځان له شپان توب
ستنه نه کړ او دَ افت دَ ورځي آرزو مِ و نه کړه ته ښه پوهیږي
۱۷ چه هر هغه څه چه ځما له شونډو ووتل ستا دَ وړاندِ وُو ۱۷ ته

ځما دپارَ هیبتناک مه شه ته دَ شر په ورځ کښ ځما پناه یې -
۱۸ هغوي چه په ما بانډِ ظلم کوِي شرمنده دِ شِي لیکن زه دِ شرمنده ۱۸
نه شم هغوي دِ په ترس کښ ثِي مگر زه دِ په ترس کښ نه شم په
هغوي بانډِ دَ شر ورځ راوله او په سختو ماتیدلو يُ مات کړه
۱۹ خداوند ما ته داسي فرمایلي دِي چه لاړ شه او ځما دَ قوم دَ ۱۹
زامنو په دروازي چه په کښ دَ یهوداه بادشاهان راځِي اوچه باهر
ور نه دروځي او دَ اورشلیم په ټولو دروازو بانډِ ودرېږه ۲۰ او هغو ۲۰
ته ووایه چه اي دَ یهوداه بادشاهانو او اي دَ یهوداه ټولو خلقو او
دَ اورشلیم ټولو اوسیدونکیو چه په دروازو کښ ننه وځِي دَ خداوند
کلام واوريِ ۲۱ خداوند داسي وايي چه تاسي په ځان خپل خبردار اوسيِ ۲۱
او دَ سبت دَ ورځي پیټي مه پورته کوِئ او دَ اورشلیم دَ دروازو له
لاري يُ دننه مه راوريِ ۲۲ او تاسي دَ سبت دَ ورځي پیټي له خپلو کورونو ۲۲
دَ بانډِ مه وړيِ او هیڅ رنگ کار مه کوِئ بلکه دَ سبت ورځ پاکه گڼيِ
لکه چه ما ستاسي پلرونو او نیکونو ته فرمایل ۲۳ مگر هغوي نه واوریدل ۲۳
نه يُ غوږونه کیښودل بلکه خپلي غاړي يُ سختي کړي چه اوریدونکي نه
شِي او تربیت حاصل نه کړِي ۲۴ او داسي به وشِي چه که تاسو په زړه ۲۴
سره ځما واوريِ خداوند وايي او دَ سبت په ورځ کښ تاسي ددي ښهر
دَ دروازو دننه به پیټي را نه وړيِ بلکه دَ سبت ورځ به پاکه گڼيِ
تر دي پوري چه په هغي کښ به هیڅ کار نه کوِئ ۲۵ نو ددي ښهر په ۲۵
دروازو کښ به بادشاهان او سرداران داخل شِي چه دَ داؤد په تخت
جلوس کوِي هغوي او دَ هغو امیران او دَ یهوداه خلق او دَ اورشلیم
اوسیدونکي په گاډیو او په آسونو به سواره وِي او دا ښهر به تر
همیشه پوري آباد وِي ۲۶ او دَ یهوداه له ښهرونو او دَ اورشلیم له اطرافو ۲۶
او دَ بنیمین له زمکي نه او له میدانَ او له کوهستانَ او له سهیلَ به
له سیځونکیو قربانیو او له ذبیحو او له هدیو او له لبانو سره راشِي او

۲۷ له څان سره به دَ شکواني هديي دَ خداوند په کور کښ راوړي ۲۷ مګر
که تاسي څما وانه وريئ چه دَ سبّت ورځ مقدّسه وګڼئِ او پيټي
اخستي دَ سبّت په ورځ دَ اورشليم په دروازو کښ ورننه نه وړئِ نو
به زه دَ هغه په دروازو کښ اور بل کړم چه دَ اورشليم محلّونه
وخوري او مړ به نه شي ✢

## اتلسم باب

۱ ۲ ۱ هغه کلام دَ خداوند چه ارمياه ته ورسيده او هغه وويل ۲ چه پورته
شه او دَ کلال کورته لاړ شه او زه به هلته کښ خپلي خبري تا ته
۳ واوروم ۳ نو زه دَ کلال کور ته ورکوز شوم او څه ګورم چه هغه په
۴ چکرونو باندِ څه کار کوي ۴ هغه وقت هغه دَ خټي لوښي چه هغه
جوړ کړي وه دَ کلال په لاس کښ خراب شه نو هغه يو بل لوښي ورنه
۵ جوړ کړ لکه چه کلال ته ښه معلوم شه چه جوړ ئي کړي ۵ نو دَ
۶ خداوند دا کلام په ما نازل شه چه ۶ اي دَ اسرائيل ټبرَ زه دَدي کلال
په شان له تاسي سره کولي نه شم څه؟ خداوند وائي ګورئِ لکه چه
خټه دَ کلال په لاس کښ دَه هم هسي اي دَ اسرائيل ټبرَ تاسي څما
۷ په لاس کښ يئِ ۷ که کوم وقت دَ کوم قوم او دَ کوم بادشاهت په حق
۸ کښ ووايم چه هغه وکاږم او وئي نړوم او ويران ئي کړم ۸ که چري
هغه قوم چه دَ هغه په حق کښ ما دا وويل چه له خپلي بدي بيرته
راشي نو زه به هم له هغه آفت پښيمان شم چه له هغو سره مِ دَ
۹ کولو فکر کړي وه ۹ او بيا که زه دَ کوم قوم او دَ قوم بادشاهت په باب
۱۰ ووايم چه هغه بنا کړم او وئي لګوم ۱۰ او دي هغه چه څما په نظر کښ
بد دي وکړي او څما آواز وانه وري نو زه به هم له هغي نيکي نه پښيمان
شم چه له هغه سره مِ ويلي وُو چه فائده به ورو بخښم
۱۱ ۱۱ او اوس ورشه دَ يهوداه خلقو او دَ اورشليم اوسيدونکيو ته
ووايه چه خداوند داسي فرمائي ګوره زه په تاسو يو شر جوړوم او

ستاسو په مخالفت کښې يو فکر کوم نو اوس دِ له تاسو نه هر يو له
خپلې بدې لارې بېرته راشي او خپل خپل کارونه او لارې دِ آراسته
۱۲ کړي ۱۲ ليکن هغوی وُوِ چه دِ نااميدي خبره ده دې دَپارَ چه مونږ به
دَ خپلو خيالونو پېروي وکړو او مونږ هر يو به دَ خپل خپل بد زړه په
۱۳ کجروي عمل وکړو ۱۳ په دې سبب خداوند داسې فرمايي چه اوس دَ غير
قومونو په منځ کښې پوښتنه وکړئ چه چا داسې خبرې کله اوريدلي دي
۱۴ دَ اسرائيل پېغلې بيحده هيبتناک کار وکړ ۱۴ دَ لُبنان واوره به دَ
هغه ميدان له غره نه کله غائبه شي هغه يخې بهيدونکې اوبه چه
۱۵ له لرې راځي وچې به شي څه؟ ۱۵ ځکه چه زما قوم زه هېر کړم او دَ
باطل دَپارَ ئې لُبان سيځلي دي او دوی هغوی ته دَ هغو په لارو کښې
هو په قديمو لارو کښې بدرې ورکړې دي تاچه دوی په لارو کښې په
۱۶ داسې لارې چه جوړه شوې نه ده لاړ شي ۱۶ چه دوی خپله زمکه دَ حيرانۍ
او دَ هميشه شپېلکې سبب کړي هر يو چه په دې لوري تېر شي حيران
۱۷ به شي او خپل سر به خوځوي ۱۷ زه به هغوی دَ دښمن دَ وړاندِ گويا
کښې په مشرقي باد سره تار په تار کړم دَ هغو دَ آفت په ورځ کښې به
زه هغوی ته شا ورښکاره کړم څهره به ور ښکاره نه کړم
۱۸ ۱۸ نو هغوی وُوِ چه راشئ چه مونږ دَ ارمياه په مخالفت کښې په فکر
سره فکر وکړو ځکه چه تورېت به له کاهنَ لاړ نه شي او نه صلاح له
حکيم نه او نه کلام له نبي نه راشئ چه مونږ هغه په ژبې ووهو او دَده
۱۹ په هيڅ خبرې و نه نغوږو ۱۹ اې خداوندَ ته په ما باندِ فکر وکړه او دَ هغو
۲۰ آواز چه له ما سره جګړېږي ۲۰ واوره دَ نېکۍ په بدلې کښې دِ بدي وکړې
شي څه؟ ځکه چه هغوی زما دَ ځان دَپارَ ډوغل وکنوده په ياد کړه چه
زه ستا په حضور ودريدم چه دَ هغو شفاعت وکړم چه ستا قهر له
۲۱ هغو نه وګرزوم ۲۱ دې دَپارَ دَ هغو هلکان وقحط ته وسپاره او دَ توري
وخوکې ته ئې حواله کړه دَ هغو له ارتينو . دَ هغو ښځې رانډول شي او دوی

دِ کوندي شي او میړونه دِ مړه پراته وِي هغو ځوانان دِ دَ قتل په ځاي
۲۲ کښې په توري وهلي وِي ۲۲ تر هغه چه نه ناڅاپه په هغو لښکر ذر و
خیژوِي دَ هغو له کورونو دِ ناره واوریدلي شِي ځکه چه هغوي ځما دَ
۲۳ نیولو دَپارَ ډوغل وکښودله او ځما دَ پښو دَپارَ ئي دامونه پټ کړل ۲۳ مګر
اي خداوندَ ته دَ هغوي ټول مصلحتونه چه له مخالفت ئي ځما په قتل
وکړل پیژني دَ هغو بدِي معافوه اودَ هغو ګناه له خپل مخه مه لرې
کوه لیکن هغوي دِ ستا له حضورَ وغورولِي شي دَ خپل قهر په وقت
کښې ته له هغو سره داسي کار وکړه +

# نولسم باب

۱ آ خداوند داسي فرمايي چه ته لاړ شه دَ کلال دَ خټي صراحي وپیره او دَ
۲ قوم له بزرګانو او دَ کاهنانو له سردارانو نه ځني درسره کړه ۲ او دَ
بنِي هنوم په خوړي کښې دَ کلالانو دَ دروازي د ننه وتلو دَ وراندِ ووزه او
هغه خبري چه زه ئي در ته ووایم ته ئي هلته کښې منادِي کړه او
۳ ووایه ۳ چه اي دَ یهوداه بادشاهانو او دَ اورشلیم اوسیدونکیو دَ
خداوند کلام واورِئِ خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي فرمايي
کوره زه به په دي مکان باندِ داسي بلا نازله کړم چه هغه څوک
۴ چه دَدي حال واورِي دَ هغه غوږونه به وتزبزِي ۴ ځکه چه هغوي
زه پرېښودم او دغه مکان ئي پردَي کړ او په دغه کښې دَ بېګانه خدايانو
دَپارَ لبان وسېځل چه هغوي نه دوي نه دَدوي پلرونو او نیکونو او
نه بادشاهانو دَ یهوداه پېژاندل او دغه مکان ئي دَ پاکانو له وینو
۵ ډک کړه ۵ او دَ بعل دَپارَ ئي اوچت مکانونه جوړ کړل دي دَپارَ چه خپل
زامن دَ بعل دَ وراندِ دَ سېځونکیو قربانیو دَپارَ په اور کښې وسېځي
چه نه مِ وفرمائیل او نه مِ دَ هغو ذکر وکړ او نه مِ په زړه کښې
۶ راغلل ۶ دي دَپارَ کوره هغي ورځي راځي خداوند وايي چه دغه مکان
به توفت ونه باله شي او نه د بنِ هنوم خوړه بلکه دَ قتل خوړه (به ورته

وایي) ۷ او په دي ځاي کښ به دَ یهوداه او دَ اورشلیم مصلحت باطل ۷
کړم او زه به داسي وکړم چه دوي به دَ خپلو دښمنانو دَ وړاندِ او دَ
هغو له لاسونو چه دَدوي دَ ځان غوښتونکي دِي په توري پریباسم او
زه به دَ هغو مړي دَ هوا مرغانو او دَ زمکي درندګانو ته ورکړم چه
۸ وئي خوري ۸ او زه به دا ښهر دَ حیراني او دَ شپیلکي سبب کړم هر
یو چه هلته تیریږي ورته حیران به وِي او دَ هغه دَ ټولو وهني په
۹ سبب به شپیلکي وکړي ۹ او زه به په دوي باندِ دَدوي دَ زامنو او
لونړو غوښي وخوروم بلکه هر یو به دَ خپل اشنا غوښي خوري دَ قلابندي
په وقت او په هغي تنګي کښ چه په هغي کښ دَدوي دښمنان او دَ دوي
۱۰ دَ ځان غوښتونکي ئي په تنګ کړي ۱۰ نو ته هغه صراحي دَ هغو خلقو دَ
۱۱ وړاندِ چه له تا سره لاړ شي ماته کړه ۱۱ او هغو ته ووایه چه خداوند
دَ لښکرو داسي وایي چه زه به دغه قوم او دغه ښهر داسي مات کړم
لکه چه څوک دَ کلال لوښي مات کړي چه بیا جوړیدلي نه شي او خلق
به په توفت کښ ښخ کوي تر هغه پوري چه دَ ښخیدلو ځاي باقي نه شي
۱۲ ۱۲ هم هسي به زه له دي ځاي سره او دَ هغه له اوسیدونکیو سره
۱۳ وکړم خداوند وایي او زه به دا ښهر دَ توفت په دود کړم ۱۳ او دَ اورشلیم
کورونه او دَ یهوداه دَ بادشاهانو کورونه به ناپاک شي دَ توفت دَ ځاي
په دود هو هغه ټول کورونه چه دَ هغو په بامونو ئي دَ آسمان دَ ټول
لښکر دَپارَ لُبان وسیځل او دَ بیګانه خدایانو دَپارَ ئي دَ څښلو هدیي تویولي
۱۴ ۱۴ نو ارمیاه له توفت نه چه هلته کښ خداوند دَ نبوت کولو دَپارَ
استولي وه پسته راغي او دَ خداوند دَ کور په غولي کښ ودریده
۱۵ ټولو خلقو ته ئي ووِيِ ۱۵ چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي
فرمایي چه ګوره زه به په دي ښهر او دَ هغه په ټولو کلیو باندِ هغه
ټولي شر چه ما په هغه ویلي وُو راولم ځکه چه دوي نهایتَ
ګردن کشي وکړه دي دَپارَ چه ځما خبري نه واورِي ❖

# شلم باب

١ آ داسي وشول چه فشحور زوي دَ امیر کاهن چه دَ خداوند په کور
٢ کښې سردار وه چه ارمیاه داخبري په نبوّت سره کولي واوریدلي ٢ نو
فشحور ارمیاه نبي وواهه او په هغې کوندي کښې ئي واچاوه چه دَ
٣ بنیمین په پاس دروازي کښې دَ خداوند کور ته نژدي وه ٣ او بله ورځ داسې
وشول چه فشحور ارمیاه له کوندي ویوست نو ارمیاه هغه ته وویل
٤ چه خداوند ستا نوم فشحور نه: بلکه ماجورمسابیب وباله ٤ ځکه چه
خداوند داسي وائي چه ګوره زه به تا ستا دَ ځان دَپارَ او دَ خپلو
ټولو دوستانو دَپارَ یو ترس کړم هغوي به دَ خپلو دښمنانو په توري پرېوزي
او ستا سترګي به دا حال ووینې او زه به ټول یهوداه دَ بابل دَ بادشاه
لاس ته وسپارم او هغه به دوي په بند سره و بابل ته بوزي او په
٥ توري به ئي قتل کړي ٥ او زه به ددي ښهر ټول دولت او ټول حاصل
او دَ هغه ټول قیمتي څیزونه او دَ یهوداه دَ بادشاهانو ټولي خزاني زه به
دَ هغو دَ دښمنانو په لاس کښې ورکړم چه دوي به لوټ کړي او و به
٦ ئي نیسي بابل ته به ئي بوزي ٦ او اي فشحورَ ته او ټول چه ستا په
کور کښې اوسي په بند به لاړ شي او ته به په بابل کښې ورسیږي
او هلته کښې به مړ شي او هلته کښې ښخ شي ته او ستا ټول دوستان
٧ چه هغوي ته به دِ دروغ نبوّت کاوه ٧ اي خداوندَ تا زه ولمسولم او زه
لمسولي وم ته له ما نه زیات قوي وي او ته غالب شوي زه ټوله ورځ
٨ مسخره جوړ شوم هر یو ټوقي راپوري کوي ٨ ځکه هغه کلام چه ما به
هر وار وایه ناري به مې کولي ماخو ناره وکړه چه غضب او لوټ او
٩ دَ خداوند کلام هر ورځ خما دَ ملامتیا او دَ خندا سبب ګیده ٩ او که
زه وایم چه زه به دَدغه ذکر ونه کړم نه به په مخ کښې دَ هغه
په نوم ووایم لیکن دَ هغه کلام خما په زړه کښې دَ بل اور په دود
وه خما په هډونو کښې بند شوي وه نو زه په ټینګولو سره ستړي شوم

او سهيدلي نه شوم
١٠ آ١٠ خکه چه ما دَ ډېرو تهمت واوريده په خلورو خواؤ ويره وه دَ
هغه په باب شکايت وکړه هغوي وايي او مونږ به ئي شکايت
وکړو څما ټول اشنايان څما دَ تېندک خوړلو په انتظار کښې دي او وايي
چه ښايئ چه دي به وغوليږي نو به مونږ په ده باندِ غالب شُو او
١١ خپله بدله به ورنه واخلو آ١١ ليکن خداوند دَ يوه هيبتناک بهادر په
شان له ما سره دي دَپارَ به څما ربړونکي ټکر وخوري او غالب به
نه شي او ډېر به شرمنده شي دي دَپارَ چه هغوي به دانايي سره کار
کړي نه دي نو دَ هغو شرمندګي به تر ابدَ پوري وي هېڅکله به هېره
١٢ نه شي آ١٢ پس اي خداوندَ دَ لښکرو چه صادق ازمايي او په ګُردو او
په زړونو نظر لري هغه بدله چه ته ئي ورنه واخلي زه دِ هغه ووينم
١٣ دي دَپارَ چه ما خپله مقدّمه تا ته ظاهره کړه آ١٣ دَخداوند ثنا غږوئ
دَخداوند شکر کوئ څکه چه ده دَ مسکينانو ځانونه دَ بدکارانو له
لاسونه خلاص کړي دي
١٤ آ١٤ لعنت په هغي ورځي چه زه په کښې پيدا شولم هغه ورځ چه
١٥ زه په کښې مور وزيږولم هيڅ دِ مبارکه نه وي آ١٥ لعنت په هغه سړي باندِ
چه څما پلار ته ئي خبر وکړ چه زوي دِ وشه چه په هغه سبب ئي ډېره
١٦ خوښي وکړه آ١٦ هو هغه سړي دِ دَ هغو ښهرونو په دود وي چه خداوند
واړول او پښېمانه نه شه او صباح دِ خوفناک شور واوري او دَ غارمي په وقت
١٧ يو لوي غوريږ آ١٧ دي دَپارَ چه هغه زه په رحم کښې قتل نه کړم نو به څما مور
١٨ څما قبر وه او رحم به ئي مدام باردار آ١٨ ځله زه له رحم نه ووتلم چه
مشقت او رنځ ووينم او چه ورځي مې په رسوائي کښې تيري شي ❊

## يوويشتم باب

١ آ١ هغه کلام چه دَخداوند له طرف نه ارمياه ته ورسيده چه صدقياه
بادشاه فشحور زوي دَ ملکياه او صفنياه زوي دَ معسياه کاهن له ده ته

۲ دا خبره واستوله چه څمونږ په خاطر له خداوند نه پوښتنه وکړه ځکه
چه نبوکدرځر دَ بابل بادشاه له مونږ سره جنګ کوِي ښايي چه خداوند
به له مونږ سره دَ خپلو ټولو عجائب کارونو په موافق داسي کار وکړِي چه
له مونږ سره پورته لاړ شي
۳ نو ارمیاه ودوي ته ووِ چه تاسي صدقیاه ته داسي ووايئِ
۴ چه خداوند دَ اسرائیل الله داسي فرمايي چه ګوري زه به دَ جنګ
وسلي چه ستاسي په لاس کښ دِي چه په دغو سره تاسي دَ بابل
له بادشاه او له کسدیانو سره چه دَ دیوالونو باهر په تاسي ګرزیدلي
دِي جنګیږئِ راوګرزم او زه به هغوي په دي ښهر کښ یوځاي کړم
۵ او زه به پخپله له خپل اوږد کړي لاس سره او په قوت دَ بازو
سره له تاسو سره وجنګیږم هو په قهر او په غضب سره او په لوي
۶ غصي سره او زه به دَ دي ښهر اوسیدونکي انسان او حیوان ووهم
۷ په لويي وبا سره به مړه شي او بس له هغه خداوند وايِي زه به دَ
یهوداه بادشاه صدقیاه او دَده نوکران او قوم هو هغوي چه په دي
ښهر کښ له وبا او له توري او له قحط نه پاتي دِي دَ بابل دَ بادشاه
نبوکدرځر په لاس کښ او دَ دوي دښمنانو په لاس کښ او دَ هغو په لاس
کښ چه دَ دوي دَ ځان غوښتونکي دِي وسپارم
او هغه به دوي دَ توري په مخ ووهِي او نه به شفقت پرِ وکړي او
نه به په دوي ترس وکړِي او نه به رحم پرِ وکړي
۸ او ته به دي قوم ته ووايي چه خداوند داسي وايي چه ګوره
۹ زه تاسي دَ وړاندِ دَ ژوند لار او دَ مرګ لار ګرزوم هرڅوک چه
په دي ښهر کښ اوسي نو په توري او په قحط او په وبا به مړه شي
مګر هغه چه ووزي او دَ کسدیانو چه تاسي ئې ګیر کړي يئِ پناه ونیسي
۱۰ نو ژوندي به وِي او دَ هغه ځان به دَ هغه دَپارَ غنیمت وِي ځکه
چه ما خپل مخ دَدي ښهر په لورِي کړي دَي دَ شر دَپارَ نه دَ ښیګړي

دَپارَ خداوند وایي چه هغه به دَ بابل دَ بادشاه په لاس کښ ورکړې
شِي او هغه به ئې په اور وسوزِي ۱۱ او دَ یهوداه دَ بادشاه ټبر ته ووایه ۱۱
چه دَ خداوند کلام واوره ۱۲ اي دَ داؤد ټبرَ خداوند داسي وایي تاسي ۱۲
صباح پاڅئِ انصاف کوئِ او لوټ شوي دَ ظالم له لاس نه خلاص
کړئِ هسي نه چه ستاسي دَ کارونو دَ بدِي په سبب ځما قهر دَ اور په
دود بل شِي او په دي طور به بلیږي چه هیڅوک به ئې مړولي نه شِي
۱۳ اي دَ خوړي اوسیدونکیو او دَ میدان کمرو چه وایئِ چه څوک به په ۱۳
مونږ حمله وکړي او څمونږ په ځایونو کښ به څوک راننوزي خداوند وایي
زه ستا مخالف یم ۱۴ او ستاسي دَ کارونو دَ میوي په موافق به تاسي ۱۴
ته سزا درکړم خداوند فرمایي او زه به دَ هغو په ځنګل کښ اور ولګوم
چه دَ هغه ټول اطراف به وخوري *

## دوویشتم باب

۱ خداوند داسي وایي چه دَ یهوداه دَ بادشاه کره ورشه او هلته ۱
کښ دا خبره وکړه او ووایه ۲ اي دَ یهوداه بادشاه چه دَ داؤد په تخت ۲
باندِ ناست یي دَ خداوند کلام واوره ته او ستا خلق چه په دي دروازو
راننوزي ۳ خداوند داسي وایي چه دَ عدل او دَ صداقت کار کوئِ او دَ ۳
ظالم له لاس نه لوټ شوي خلاص کانږئِ او له چا سره خرابي مه کوئِ
او په مسافرانو او په یتیمانو او په کونډو ظلم مه کوئِ او په دي مکان
کښ دَ بي‌ګناه ویني مه توېوئِ ۴ ځکه چه که تاسي دا کار وکړئِ نو دَ داؤد ۴
په تخت ناست بادشاهان به په ګاډیو او په آسونو باندِ سوار دَ دي کور په
دروازو درننوزي هو هغه او دَ هغه نوکران او دَ هغه خلق ۵ او که ۵
تاسي دا خبري نه واورئِ نو خداوند وایي چه زه پخپل قسم کوم چه دا کور
به یوه ویرانه شِي ۶ ځکه چه دَ یهوداه دَ بادشاه دَ ټبر په باب خداوند ۶
داسي وایي چه ته ځما دَپارَ جلعاد یي دَ لبنان سر نو هم زه به دِ په یقین
سره بیابان کړم او داسي ښهرونه چه هیڅوک نه په کښ اوسي ۷ او زه ۷

به ستا په خلاف لوټيري تيار کړم هر يو دَ خپلي وسلي سره اوهغوي
۸ به ستا خاص ديوالونه پريکړي او په اور کښ به ئي واچوي ۸ او ډير
قومونه به په دي ښهر باندِ تير شِي او سري به خپل دوست ته ووايي
۹ چه خداوند دا لوي ښهر ولي داسي کړي دَي ۹ نو به دوي ځواب ورکړي
دي دَپارَ چه دوي دَ خداوند الله خپل عهد ترک کړي دَي او بيګانه
۱۰ خدايانو ته ئي عبادت وکړ اودَ هغو خدمت وکړه ۱۰ دَ مړو دَپارَ مه
ژاړئِ نه دَ هغه دَپارَ وِير کوئِ مګر دَ هغه دَپارَ چه درومي په ورتِ
ورتِ ژاړئِ ځکه چه بيرته به را نه شِي نه به خپل وطن ويني -
۱۱ ۱۱ ځکه چه دَ يهوداه بادشاه يوسياه دَ ځوي شلوم په باب چه دَخپل
پلار يوسياه په ځاي بادشاهت وکړ او له دي ځاي نه روان شه
۱۲ خداوند داسي وايي چه هغه به بيا دلته کښ را نه شِي ۱۲ بلکه دي به په
هغه ځاي کښ چه دوي ورنه په بند بيولي وه مړ شِي او دا زمکه به
۱۳ بيا ونه ويني ۱۳ هَي هَي په هغه چه خپل کور په بيِانصافي سره اوخپلي
بالي‌خانې په ظلم سره جوړوي اوخپل ګاونډي په بيکار نيسي او مزدوري
۱۴ ئي نه ورکوي ۱۴ او وايي چه زه به دَ ځان دَپارَ يو لوي کور اوهواداره
بالاخانه جوړه کړم او هغه دَخپل ځان دَپارَ دريڅي خيري ئي او دَ
۱۵ ديودارو لرګي په چت کښ لګوي او په شنګرفي ئي رنګوي ۱۵ نه به دي دَپارَ
بادشاهت وکړي څه ؟ چه نه دَ ديودار شوق لري ستا پلار نه وخوړل
او نه ئي وڅښل او عدالت اوصداقت ئي نه وکړ نو دَ هغه ښيګړه وشوه
۱۶ ۱۶ ده دَ مسکين او دَ محتاج دعویٰ واوريده او دَ هغه انصاف ئي وکړ
۱۷ نو دَ هغه ښمره وشوه دا ځما پيژندګلوي نه وَه څه ؟ خداوند وايي ۱۷ ليکن
ستا سترګي او ستا زړه په هيڅ څيز نه دِي مګر په طمعَ او دَ بيِګناه په
۱۸ وينو توِيولو باندِ او په ظلم او په ستم چه وئي کړي ۱۸ دي دَپارَ خداوند
دَ يهوداه دَ بادشاه دَ يهوسياه دَ زوي دَ يهويقيم په باب داسي وايي
چه هغوي به ده باندِ به دي خبري نه وژاړي چه هاي ځما وروره يا هاي

خوري هغوي به دَده دَپارَ دا وِير و نه کړي هاي خاوند يا هاي دَ هغه
دبدبه ۱۹ دَ هغه ښخيدل به دَ خره دَ ښخولو په دود وي دَ اورشليم له ۱۹
دروازو دَ باندِ به وښکول او وغورزول شي
۲۰ ته به لبنان باندِ وخيژه او ناره وکړه او په بسن کښ خپل آواز ۲۰
اوچت کړه او په اباريم باندِ ناره وکړه چه ستا ټول عاشقان مات شول
۲۱ ما ستا دَ اقبالمندِي په ورځ له تا سره کلام وکړ ليکن تا وُوِ چه زه ۲۱
به ئي وا نه ورم ستا له ځواني نه هم دغه ستا عادت دَي چه ځما آواز
نه منِي ۲۲ يو باد به ستا ټول شپانه وځروي او ستا عاشقان په بند ۲۲
لاړ شي هغه وقت به ته دَ خپل ټول شرارت دَپارَ شرم وخوري او
پښيمانه به شي ۲۳ اي دَ لبنان اوسيدونکي چه خپله ځاله په ديودارو ۲۳
باندِ جوړوي ته به څرنګ دَ شفقت لايقه شي چه ته دَ لنګانه په دردونو
کښ راشي دَ هغي ښځي په درد چه دَ لنګيدو درد کښ وي ۲۴ ځما پخپل ۲۴
ژوند قسم دَي خداوند فرمايي چه اګر که دَ يهوداه بادشاه دَ يهويقيم
زوي کونياه ځما دَ ښي لاس مُهر وي نو هم له هغه ځاي به دِ وکاږم
۲۵ او دَ هغو په قبضي کښ چه ستا دَ ځان غوښتونکي دِي او دَ هغو په ۲۵
لاس کښ چه ته ئي له ځخري داريږي يعني دَ بابل بادشاه نبوکدنضر
په لاس کښ او دَ کسديانو په لاس کښ به دِ ورکړم ۲۶ هو زه به ۲۶
تا او ستا مور چه وئي زيږولي په غير ملک کښ چه هلته کښ نه
پيدا شوي نه وي و به مو باسم او هلته کښ به مړه شئ ۲۷ ليکن په ۲۷
هغه ملک کښ چه هغوي ئي غواړي چه بيرته ورشي نو هرګز به بيرته
ور نه شي ۲۸ دا سړَي کونياه نفرتناک مات شوي لوښي دَي يا ناکاره ۲۸
لوښي دَي چه نه منظور کيږي هغوي ځله بستلي شي هغه او دَ هغه اولاد او
به داسي زمکي کښ غورزول شي چه هغوي ئي پيژني ۲۹ اي زمکي زمکي زمکي دَ ۲۹
خداوند کلام واوره ۳۰ خداوند داسي فرمايي دا سړَي بي اولاده وليکِي دا سړي چه ۳۰
پخپلو ورځو کښ به اقبال نه ووينِي ځکه چه هيڅوک به دَ هغه له اولاد نه

اقبالمند نه وِي چه دَ داؤد په تخت کښيني او په يهوداه بادشاهت وکړي ٭

## درويشتم باب

١ آ هَي هَي په هغو شپنو باندِ چه څما دَ څراګاه ګډي هلاکي او پريشاني کوي
٢ خداوند واېي ٭ دي دَپارَ خداوند دَ اسرائيل الله دَ هغو شپنو په مخالفت
کښ چه څما قوم څروِي داسي واېي چه تاسي څما رمه تار په تار کړه او
هغه مو شړلي دَه او ساتنه مو نۀ وه کړه ګورئ زه به ستاسو دَ
٣ کارونو شرارت په تاسي وساتم خداوند واېي ٭ ليکن زه به هغوي چه
څما له رمي نه پاتي شوي دِي له ټولي زمکي چه هلته کښ مِ دوي
شړلي دِي راجمع کړم او دوي به دَ دوي وشپالونو ته بيرته راولم او
٤ دوي به ميوه‌دار شي او زيات به شي ٭ او زه به په هغوي داسي شپون
مقرر کړم چه دوي وڅروِي او دوي به بيا نه ډاريږي نه به ترسيږي
نه به ورکيږي خداوند واېي

۵ ٭ ګورئِ هغه ورځي راځي خداوند واېي چه زه به دَ داؤد دَپارَ يو
دَ رښتيني ښاخ پورته کړم او دَ بادشاه په شان به بادشاهي وکړي او
٦ اقبالمند به وِي او عدالت او انصاف به په زمکي کښ جاري کړي ٭ دَ
هغه په ورځو کښ به يهوداه خلاصي مومي او اسرائيل به په سلامتي
سره اسوګنه کوِي او دَ هغه نوم به دا بللي شي يهواه صداقت څمونږ
٧ ٭ دي دَپارَ ګوره هغه ورځي راځي چه دوي به ونه واېي چه خداوند
٨ ژوندي دَي چه بني‌اسرائيل ئې دَ مصر له ملک نه ويوست بلکه خداوند
ژوندي دَي چه دَ اسرائيل دَ ټبر اولاد لره دَ شمال له ملک نه او له
ټولو ملکونو چه هلته کښ مِ دوي شړلي وُو را وخيژول او بو مِ تلل
چه په خپلي زمکي کښ واوسي

٩ ٭ دَ نبيانو په باب څما زړه په ما کښ مات شه ټول هډونه مِ
رپيږي دَ خداوند په سبب او دَ ده دَ پاکو خبرو په سبب لکه شرابي
١٠ سړي او دَ هغه ځوان په دود چه له شرابو مغلوب شه ٭ ځکه چه زمکه

له زناكارانو ډكه شوه دَ لعنت په سبب زمكه وِير كوِي دَ ميدان څراكاهي
وچي شوي ځكه چه دَ دوي عادت بد دَي او دَ هغه زور سم نه دي-
١١ چه نبِي او كاهن دواړه ناپاک دِي هو ما دَ خپل كور په منځ كښ دَ ١١
دوي بدِي وموندِه خداوند واېي ١٢ دي دَپارَ به دَ دوي لاري دَ دوي په ١٢
حق كښ داسي وِي لكه ښوئيدونكي ځايونه په تاريكِي كښ دوي به په
هغه كښ ټېل وهل شِي هلته كښ به وپړزِي چه زه به وربانډِ بلا
راولم هو دَ هغو دَ بدلي آخستلو كال خداوند واېي ١٣ او ما دَ سمرون ١٣
په نبيانو كښ احمقِي ليدلي دَه دوي دَ بعل له طرف نه نبوّت وكړ او
ځما خلق اسرائيل ئي خطا كړي دِي ١٤ ما دَ اورشليم په نبيانو كښ هم يو ١٤
هيبتناک ځيز ليدلي دَي دوي زناكارِي كوِي او دَ دروغو پيروِي كوِي دوي
دَ بدكارانو لاسونو ته هم زور ټخښي تر دي حده چه هيڅوک له خپلي
بدئِ نه نه كرزِي هغوي ټول ځما دَپارَ داسي دِي لكه سدوم او دَ
هغه اوسيدونكي دَ عموره په دود دِي ١٥ دي دَپارَ خداوند دَ لښكرو ١٥
دَ نبيانو په باب داسي واېي چه كوره زه به په هغوي مستياره وخورم
او دَ زهرو اوبه به پرِ وڅښم ځكه چه اورشليم دَ نبيانو په سبب په
ټولي زمكي كښ بيدينِي وغوړوله ١٦ خداوند دَ لښكرو داسي واېي چه ١٦
دَ هغو نبيانو خبري مه اورئِ چه تاسي ته نبوّت كوِي هغوي باطل
درزده كوِي هغوي دَ خپلو زړونو رؤياوي واېي او نه چه دَ خداوند
له خولي ووتلي ١٧ دوي هغوي ته چه ما سپک كنړي واېي خداوند ويلي دِي ١٧
چه ستاسي سلامتِي به وِي او هغوي هر يو ته چه دَ خپل زړه په سركښِي
دروِمي واېي چه په تاسو به هيڅ بلا رانه شِي ١٨ ليكن له هغوي نه څوک ١٨
دَ خداوند په مصلحت ودريدلي دَي چه دده كلام ووينِي او اوري
چا ځما كلام ونغوت او غوږ ئي پرِ كيښود ١٩ كوره دَ خداوند له قهره ١٩
يوه سيلئِ دَ هغه په لوري وچليده يو كرځيدونكي طوفان چه دَ بدانو
په سر به پريوزِي ٢٠ دَ خداوند غضب به بيا و نه كرزِي تر هغه پوري ٢٠

چه په آخر ئي نه ورسوِي او دَ خپل زړه اراده پوره نه کړي تاسو به
۲۱ راتلونکي ورځي هغوي ته ښي معلومي کړي ۲۱ ما دغه نبيان نه واستول
مګر دوي زغليدلي دِي ما هغوي ته نه وويل مګر دوي نبوّت وکړ-
۲۲ ۲۲ ليکن که دوي ځما په مصلحت ثابت‌قدمَ وَي نو به ئي ځما خبري ځما
خلقو ته آورولي تاچه هغوي دَدوي له بدو لارو او دَ هغوي دَ کارونو
۲۳ له بدِي نه راوګرزوِي ۲۳ زه نژدي الله يم څه؟ او دَ لري الله نه يم
۲۴ خداوند وايي ۲۴ کوم سړَي به پټو ځايونو کښ خپل ځان پټولي شي څه؟
چه زه ئي و نه وينم خداوند وايي آسمان او زمکه له ما نه ډک نه دِي
۲۵ څه؟ خداوند وايي ۲۵ ما واوريدل چه نبيانو وويل هغه چه ځما نوم
اخلِي دروغ نبوّت کوِي او وايي چه خوب مِ ليدلي دَي خوب مِ ليدلي دَي
۲۶ ۲۶ دا به تر کومه پوري دَ نبيانو دَ نبيانو په زړه کښ وِي چه دروغ نبوّت
۲۷ کوِي ۲۷ هو هغوي دِ خپل زړه دَ فريب‌کارِي نبيان دِي چه ګمان کوِي
چه په خپلو خوبونو سره چه هغوي ئي هر يو خپل ګاونډِي ته بيان کوِي
ځما به قوم ئي ځما نوم هير کړ لکه چه دَدوي پلرونه ځما نوم دَ بعل دِپاره
۲۸ هير کړ ۲۸ هغه نبي څخه چه خوب دَي خوب دِ بيان کړي او چا څخه چه
ځما کلام دَي نو ځما کلام دِ په ديندارِي سره وايي دَ غنمو له پرورِي
۲۹ سره څه نسبت خداوند وايي ۲۹ ځما کلام دَ اور په دود نه دَي څه؟
۳۰ خداوند وايي او دَ ځټک په شان چه کمر ټوټي ټوټي کړي ۳۰ دي دِپاره
ګوره زه دَ هغو نبيانو مخالف يم خداوند وايي چه هر يو له خپل ګاونډِي
۳۱ نه ځما خبري غلا کوِي ۳۱ ګوره زه دَ هغو نبيانو مخالف يم خداوند وايي
۳۲ چه خپله ژبه استعمال کوِي او وايي چه دَي فرمايي ۳۲ ګوره زه دَ هغو
مخالف يم خداوند وايي چه دروغژن خوبونه په نبوّت سره وايي او هغوي
ته ئي بيان کوِي او په دروغو او په شيخيو ځما خلق غلطوِي مګر ما
دوي نه واستول نه مِ حکم ورکړ دي دِپارَ به دي قوم لره له هغوي
نه هرګز فائده نه وِي خداوند وايي

۳۳ او هرکله چه دا قوم یا نبي یا کاهن له تا نه پوښتنه وکړي ۳۳
او ووايي چه دَ خداوند وحي څه دَي؟ نو ته به ورته ووايې څه وحي
چه تاسو به پرېږدم خداوند وايي ۳۴ او نبي او کاهن او قوم هرڅوک ۳۴
چه ووايي دَ خداوند وحي زه به هغه سړي او دَ هغه ټبر ته سزا ورکړم
۳۵ هر يو دِ خپل ګاونډي ته او هر يو خپل ورور ته داسي ووايي چه ۳۵
خداوند څه ځواب درکړي دَي او خداوند څه ويلي دِي ۳۶ مګر دَ ۳۶
خداوند وحي ذکر به هیڅري تاسي ونه کړئ چه دَ هر يوه دَپاره ئې وحي
وِي ځکه چه تاسي دَ ژوندي الله دَ لښکرو څښتن دَ الله خبري اړولي
دِي ۳۷ ته به نبي ته داسي ووايي چه خداوند څه ځواب درکړي دَي ۳۷
او خداوند څه ويلي دِي ۳۸ ليکن چه تاسو وايئ چه دَ خداوند وحي ۳۸
دَي دَپاره خداوند داسي وايي تاسي چه دا خبره ډيره ډيره کوئ دَ خداوند
وحي او ما تاسي ته خبر واستاوه چه مه وايئ دَ خداوند وحي ۳۹ دي دَپاره ۳۹
ګوره زه هو زه به تاسي بيخي هېر کړم او تاسي او هغه ښهر چه ما تاسي
ته او ستاسي پلرونو او نيکونو ته ورکړ بخپل نفرت سره به ئې وغورزوم
او له خپل حضور به مو وشړم ۴۰ او زه به دَ هميشه دَپاره په تاسي باندِ ۴۰
يوه رسوائي او ابدي شرمندګي به راوړم چه هیڅري به هېره نه شي

## څلورويشتم باب

۱ پس له هغه چه دَ بابل بادشاه نبوکدرضر دَ يهوداه بادشاه يکونياه ۱
زوي دَ يهويقيم او دَ يهوداه اميران له کاريګرو او له پښانو سره له
اورشليم نه بند سره و بابل ته بيولي وه خداوند په ما باندِ ظاهر کړ چه
دوه ټوکرئ دَ انځيرانو دَ خداوند دَ هيکل دَ وړاندِ ايښي وي ۲ په يوي ټوکرئ ۲
کښ له ښو نه هم ښه انځير وُو دَ وړنبئ پخو شويو انځيرو په دود او
په بلي کښ خراب خراب انځير چه دَ خرابي په سبب خوړلي نه شول ۳ او خداوند ۳
راته وُوِ چه اي ارمياه ته څه ګوري او ما ورته وويل انځيران ښه انځيران
ډير ښه انځيران او خراب ډير خراب چه خوړلي نه شي ۴ بيا دَ خداوند ۴

کلام چه داني ويل ما ته ورسيده چه خداوند دَ اسرائيل الله داسي واني
٥ ۵ چه دَ دغو ښو انځيرانو په دود به زه دَ يهوداه هغه قيديان وګورم
چه له دي ځاي نه مې دَ کسديانو ملک ته استولي دي چه هلته کښ
٦ دَ دوي ښه وي ٦ چه زه به په دوي باندِ نيک نظر وکړم او دوي به
په دي ملک کښ بيرته راولم او زه به ئي جوړ کړم او نه به ئي نړوم
٧ او زه به ئي ولګوم او نه به ئي کاږم ٧ او زه به دوي ته داسي زړه ورکړم
چه ما و پيژني چه زه خداوند يم او دوي به ځما خلق وي او زه به دَ دوي
٨ الله شم ځکه چه دوي ځما په لوري په ټول زړه را وګرزي ٨ مګر دَ
خرابو انځيرانو په باب چه دَ خرابي په سبب خوړل کيدلي نه شي خداوند
په يقين سره داسي واني چه هم به زه دَ يهوداه بادشاه صدقياه او
دَ هغه اميران او دَ اورشليم باقي خلق چه په دي ملک کښ خلاص
٩ شوي دي او چه دَ مصر په زمکي کښ اوسي پريږدم ٩ هو زه به هغوي
دَ زمکي په ټولو ملکونو کښ کړيدل او بلا ته وسپارم تا چه دوي په
هر ځاي کښ چه زه ئي ور وشړم هلته کښ به دوي دَ ملامتيا او دَ
١٠ متل ويلو او دَ طعني او دَ لعنت کولو سبب شي ١٠ او زه به دَ دوي په
منځ کښ توره او قحط او وبا واستوم تر دي حده چه به له هغي زمکي
نه چه ما دوي ته او دَ دوي پلرونو او نيکونو ته ورکړه تمام شي ٭

## پنځه ويشتم باب

١ ١ هغه کلام چه دَ يهوداه دَ ټولو خلقو په باب ارمياه ته ورسيده دَ
يهوداه دَ بادشاه دَ يهويقيم زوي دَ يوسياه په څلورم کال کښ چه
٢ دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرځر ورمبي کال وه ٢ چه هغه ارمياه نبي دَ
٣ يهوداه و ټولو خلقو او دَ اورشليم ټولو اوسيدونکيو ته ووايه ٣ او
داسي ئي وويل چه دَ يهوداه دَ بادشاه يوسياه زوي دَ عمون له ديارلسم
کال نه تر نن پوري چه دري ويشتم کال دي دَ خداوند کلام ما ته راغلي دي
او ما تاسي ته ويلي دي صباح به وختي پاڅيدلم درته به مې وايه مګر

تاسي اوريدلي نه دي ٤ اوخداوند خپل ټول خدمتګذار نبيان تاسي ته ٤
دراستولي دي صباح وقتي پاڅيدلي دراستولي دي مګر تاسي نه آوريدلي
دي نه مو اوريدلو ته غوږونه کيښولي دي ٥ هغو وويل چه هريو له ٥
خپلي بدي لاري او دَ خپلو کارونو له بدي نه بيرته ژاشئ او په هغي
زمکي کښ چه خداوند تاسي ته او ستا پلرونو او نيکونو ته دَ هميشه
دَپارَ درکړه و اوسئ ٦ او په بيګانه خدايانو پسي مه ځئ چه دَ هغو خدمت ٦
او سجده وکړئ او دَ خپلو لاسونو په کارونو مو مه په قهر کوئ او زه ١
به تاسو ته هيڅ ضرر نه در و رسوم ٧ مګر تاسو څما وانه وريدل خداوند ٧
وايي دي دَپارَ چه دَ خپلو لاسونو له کارونو مو دَ خپل زيان دَپارَ په
قهر کړئ ٨ دي دَپارَ خداوند دَ لښکرو داسي وايي دي دَپارَ چه تاسي ٨
مِ خبري وانه وريدلي ٩ ګوره زه به دَ شمال ټولو ټبرو ته او خپل ٩
خدمتګذار دَ بابل بادشاه نبوکدرضر ته (خبر واستوم) اورا و به ئي ولم
خداوند وايي او زه به هغوي په دي زمکي کښ او دَ هغي په اوسيدونکو
او په هغو ټولو قومونو چه چاپيره دي را وخيژوم او هغوي بيخي خراب
کړم او هغوي به دَ حيرانئ او دَ شپيلکي وهلو سبب کړم او هغوي به
مدام ويرانه وي ١٠ بلکه زه به ئي داسي کړم چه دَ هغو له منځ نه به دَ ١٠
خوښي آواز دَ خوشحالي آواز دَ زلمي آواز دَ ناوي آواز دَ ميچني آواز او
دَ چراغ رڼا ورک کړم ١١ او دا ټوله زمکه به ويرانه او دَ حيرانئ سبب ١١
شي او دا قومونه به تر اوياؤ کالونو پوري دَ بابل دَ بادشاه غلامي وکړي
١٢ او داسي به وشي خداوند وايي چه اويا کاله پوره شي نو زه به دَ ١٢
بابل بادشاه ته او دَ هغه قوم ته او دَ کسديانو زمکي ته دَ هغو دَ
بدکاري په سبب سزا ورکړم او زه به هغه داسي ويجاړه کړم چه
تر هميشه پوري به ويرانه وي ١٣ هو زه به په هغي زمکي خپلي ټولي ١٣
خبري چه ما دَ هغي په باب وکړي يعني هغه ټولي خبري چه په دي
کتاب کښ ليکلي دي چه ارمياه ئي نبوّت وکړل او ټولو قومونو ته ئي ١

۱۴ وا وروَلي پوره کړم ۱۴ چه له دغو نه هم هم له دغو نه به ډېر قومونه
او لوي بادشاهان دَ مريي غونډِ خدمت واخلي نو هم زه به دوي ته
سره د دوي دَ عملونو په شان او دَ هغوِ لاسونو دَ کارونو په موافق
بدله ورکړم

۱۵ ۱۵ چه خداوند دَ اسرائيل الله ما ته داسي وفرمايل چه دَ
غضب دَ شرابو دغه پياله ځما له لاس نه واخله او وارو ټولو ته
۱۶ چه تا وراستوم پرِ وئ ښبه ۱۶ او و تمبيږي به او ليوني شي دَ هغي
۱۷ توري په سبب چه دَ دوي په منځ کښ ئي زه واستوم ۱۷ نو ما دَ خداوند
له لاسَ هغه پياله واخستله او په هغو وارو ټولو چه زه خداوند
۱۸ ور استولي وم و مِ ښبله ۱۸ يعني په اورشليم او دَ يهوداه په
ښهرونو او دَ هغو په بادشاهانو او دَ هغو په اميرانو چه دوي برباد
شي او دَ حيراني اودَ شپېلکي او دَ لعنت سبب شي لکه چه نن ورځ
۱۹ دي ۱۹ دَ مصر په بادشاه او دَ هغه په نوکرانو او دَ هغه په اميرانو
۲۰ او دَ هغه په ټول قوم ۲۰ او په ټولو بيګانه ؤ چه ګډوډ دي او دَ عوځ دَ
زمکي په ټولو بادشاهانو او دَ فلستنيانو دَ زمکي په ټولو بادشاهانو او
۲۱ عسقلون او په عزه او په عقرون او دَ اشدود په باقي خلقو ۲۱ او دَ ادوم
۲۲ او دَ موآب او په بني عمون ۲۲ او دَ صور په ټول بادشاهانو او دَ صيدا په ټولو
بادشاهانو او دَ جزيري په ټولو بادشاهانو چه دَ سمندر دَ پوري خوا دي
۲۳ ۲۳ په ديدان او په تيما او په بوز او په هغو ټولو چه دَ ږيري ځنګونه خريي
۲۴ او دَ عربو په ټولو بادشاهانو او دَ هغو ګډوډو خلقو په ټولو بادشاهانو
۲۵ چه په بيابان کښ اوسي ۲۵ او دَ زمري په ټولو بادشاهانو او دَ عيلام په
۲۶ ۲۶ ټولو بادشاهانو او دَ ماده په ټولو بادشاهانو او دَ شمال په ټولو
بادشاهانو چه نژدي او چه لري دي يو له بل سره او دَ دنيا په ټولو
بادشاهانو چه په روي زمين دي او پس له هغه به ئي دَ شيشک بادشاه
۲۷ وځښي ۲۷ او ته به هغوي ته ووايي چه دَ اسرائيل الله خداوند دَ لښکرو

داسي فرمايي چه تاسي يئ وڅښئ او مست شئ او قئ وکړئ او وپرزئ او بيا
مه پورته کيږئ دَ هغي توري په سبب چه زه به يئ ستاسي په منځ کښ
واستوم ٢٨ او داسي به وشي چه که هغوي دَ څښلو دَپارَ ستا له لاس نه ٢٨
په پيالي اخستلو کښ انکار وکړي نو ته هغوي ته ووايه چه خداوند دَ
لښکرو داسي وايي په يقين سره په تاسي څښل دي ٢٩ ځکه گوره زه په ٢٩
هغه ښهر چه څما په نوم باله شي آفتونه راوړل شروع کوم او تاسي
به صاف بي سزا ماندلو ووزئ څه ؟ تاسي به بي سزا ماندلو خلاص نه شئ
ځکه چه زه توره دَ زمکي په ټولو اوسيدونکو رابولم خداوند دَ لښکرو
فرمايي ٣٠ دي دَپارَ نه دَدي ټولو خبرو دَ هغو په مخالفت کښ نبوّت ٣٠
وکړه او هغوي ته ووايه چه خداوند به له بلندي نه وغرچيږي او له
خپل مقدّس مکانَ به آواز واوروي ذَي به په ډير زور او شور سره
په خپل څراگاه باندِ وغرچيږي دَ انگورو مږونکو په دود به دَ زمکي په
ټولو اوسيدونکو ناري وکړي ٣١ دَ زمکي تر سرحد پوري يوه غوغا رسيدلي ٣١
ده چه خداوند به له قومونو سره وجگړيږي دَ ټول بشر عدالت به
وکړي شريران به و توري ته وسپاري خداوند وايي ٣٢ خداوند دَ لښکرو ٣٢
داسي وايي چه گوره په ټولي تر ټولي به بلا نازله شي او دَ زمکي له
سرحدونو به يوه لويه سيلئ پورته کړي شي ٣٣ او دَ خداوند مقتولان ٣٣
به په هغي ورځي دَ زمکي له يوه سر نه تر بله سره پوري وي په هغو
به هيڅوک وير و نه کړي هغوي به ټول نه شي نه به ښخ کړي شي دَ
سره په دود به دَ زمکي په مخ پراته وي ٣٤ اي شپنو هَي هَي کوئ او ناري ٣٤
وهئ او اي دَ رمې سردارانو تاسي ځانونه (په ايرو کښ) ورغړوئ چه
ستاسي دَ قتل ورځي پوره شوي او زه به مو تار په تار کړم تاسو به
دَ يو قيمت بها لوښي په دود پريوزئ ٣٥ او شپنو ته به دَ تښتيدلو هيڅ لار ٣٥
پاتي نه شي او نه به دَ رمې و سردارانو ته دَ آزاد کيدلو ٣٦ دَ شپنو دَ ٣٦
ژړا آواز او دَ رمې دَ سردارانو يو وير دَي چه خداوند دَ هغو څراگاه خرابه

۳۷ کړي ده ۳۷ او دَ سلامتي ځاکاني په خاموشي شوي دَ خداوند دَ سخت قهر
۳۸ په سبب ۳۸ هغه دَ ځوان ببر زمري په دود خپل ځنګل پرېښي دَي په یقین
سره دَ ظالم له تندي نه او دَ هغه دَ قهر له سختي دَ هغو ملک ویران شه ❊

## شپږ ویشتم باب

۱ آ دَ یهوداه دَ بادشاه دَ یوسیاه دَ زوي یهویقیم دَ بادشاهي په شروع
کښې دا کلام دَ خداوند له طرف نه نازل شه او وني ویل چه خداوند
۲ داسي وایي ۲ ته دَ خداوند دَ کور په غولي کښې ودرېږه او دَ یهوداه دَ
ټولو ښهرونو له خلقو نه چه دَ خداوند په کور کښې سجدي کولو ته
راځي ټولي خبري چه زه ني دَ کولو حکم درکوم هغوي ته ني ووایه چه
۳ یوه خبره مه کموه ۳ ښائي چه وا به ني وري او هر یو به له خپلي بدي
لاري را وګرزي چه زه پښیمانه شم له هغي بدي نه چه دَ هغو بدکاریو
۴ په سبب ني له هغو سره کوم پستنه راشم ۴ او ته به هغوي ته ووایي
چه خداوند داسي وایي چه که تاسي ځما نه اوریئ چه ځما په تورات
۵ بانډِ چه ستاسو دَ وړاندِ مِ مقرر کړي دَي عمل وکړئ ۵ او ځما دَ
خدمتګذارو نبیانو خبري نه واوریئ چه دوي مِ تاسو ته درواستول هم
۶ وقتي پاڅیدل درواستول مِ ستول مګر تاسي نه واوریدل ۶ نو به زه دا کور
دَ شیلاه په دود کړم او دا ښهر به دَ زمکي دَ ټولو قومونو په نزد یو
۷ لعنت مقرر کړم ۷ نو کاهنانو او نبیانو او ټول قوم دَ ارمیاه خبري چه
۸ دَ خداوند په کور کښې ني کولي واوریدلي ۸ او داسي وشول چه ارمیاه
ټولي خبري تمامي کړي چه خداوند حکم ورکړي وه چه ټول قوم ته ني
وکړي نو کاهنانو او نبیانو او ټول قوم دَي ونیو او ورته وني ویل چه
۹ په یقین سره به ته قتل کړي شي ۹ ته دَ خداوند په نوم سره ځله نبوّت
کوي او و دِ ویل چه دا کور به دَ سیلاه په دود شي او دا ښهر به خراب
کړي شي او بي اوسیدونکي او ټول خلق دَ ارمیاه په مخالفت کښې دَ
خداوند په کور کښې جمع شول

۱۰ ۱۰ هرکله چه دَ یهوداه سردارانو داخبري واوریدلي نو هغوي دَ
بادشاه له کور نه دَ خداوند په کور کښ راغلل ، و دَ خداوند دَ کور
۱۱ دَ نوي دروازي په دهلیز کښیناستل ۱۱ او کاهنانو او نبیانو له سردارانو
او له ټول قوم سره خبري وکړي و ئې ویل چه دا سړي دَ قتل لایق دې
ځکه چه ده دَدې ښهر په خلاف نبوّت وکړ لکه چه تاسي په خپلو
۱۲ غوږونو اوریدلي دي ۱۲ نو ارمیاه له ټولو سردارانو او له ټول قوم
سره خبري وکړي و ئې ویل چه خداوند زه واستولم دَدې کور او دَدې
ښهر په خلاف نبوّت وکړ دَ هغو ټولو خبرو چه تاسي آوریدلي دِي -
۱۳ ۱۳ نو اوس تاسي خپلي لاري اوخپل کارونه جوړ کړئِ او دَ خداوند
الله خپل دَ آواز اوریدونکي شئِ تاچه خداوند له هغي بدِي نه چه
۱۴ ده ئې تاسو ته ویلي دِي په پښیمانِي سره بېرته راشي ۱۴ او تاسو
ځما په باب کوئِ چه زه ستاسي په لاس کښ یم چه هغه ستاسي
۱۵ په سترګو کښ نیکه او سمه وي له ما سره ئې وکړئِ ۱۵ مګر په یقین
پوه شئِ چه که تاسي ما قتل کړئِ نو دَ بي ګناه خون پخپل ځان او په
دې ښهر اودَ دغه په اوسیدونکو ئي راوړئِ ځکه چه زه په رښتیا
سرِه خداوند تاسي ته در استولي یم چه ستاسي په غوږونو کښ دا
ټولي خبري درته ووایم

۱۶ ۱۶ نو سردارانو او ټول قوم کاهنانو او نبیانو ته وویل چه دا
سړې دَ قتل لایق نه دَي ځکه چه ده ځموږ دَ خداوند الله په نوم له
۱۷ موږ سره خبري وکړي ۱۷ نو دَ ملک خو بزرګان پاځیدل او دَ قوم واړه
۱۸ ټولي ته ئې وویل ۱۸ چه میکاه مورشتي دَ یهوداه دَ بادشاه حزقیاه په
ورځو کښ نبوّت وکړ او دَ یهوداه ټول قوم ته ئي وویل او داسي خبر
ئي ورکړ چه خداوند دَ لښکرو داسي وائِي چه صیون به دَ پټِي په دود
یویه کړې شي او اورشلیم به تودي تودي وِي او دَدې کور غر به دَ
۱۹ ځنګل دَ اوچتو ځایونو په شان شِي ۱۹ نو دَ یهوداه بادشاه حزقیاه او ټول

يهوداه هغه قتل كړ شه؟ او هغه له خداوند نه نه وډاريده خه؟ او
خداوند نه ئې زاري ونه كړه خه؟ نو خداوند له هغي بدي نه چه ورته
ويلي ئې وه په پښيماني سره پسته شه هم هسي به مونږ له خپلو
٢٠ ځانونو سره يوه لويه بدي وكړو ٢٠ يو بل سړي هم وه چه دَ خداوند په
نوم ئې پيشينګوئي وكړه اورياه زوي دَ شمعياه دَ قريت‌اليعريم چه دَدي
ښهر او دَدي زمكي په خلاف ئې دَ ارمياه دَ ټولو خبرو په موافق نبوّت
٢١ وكړ ٢١ او يهوقيم بادشاه او دَده ټولو بهادرانو او ټولو سردارانو دَده
خبري واوريدي او بادشاه دَده دَ قتلولو اراده وكړه مګر اورياه دا حال
٢٢ واوريده وويريده و تښتيده مصر ته لاړ ٢٢ نو يهوقيم بادشاه څو سړي
٢٣ الناتن زوي دَ عكبور او څو نور سړي ئې ورسره مصر ته واستول ٢٣ او هغوي
اورياه له مصر راووست او يهوقيم بادشاه ته ئې راوست او هغه په
توري مړ كړ او دَ هغه مړي ئې دَ عوامو په قبرستان كښ وغورزاوه
٢٤ ٢٤ مګر اخيقام زوي دَ سافن دَ ارمياه مددګار وه دي دپاره چه دَي
دَ وژلو دپارَ دَ قوم په لاس كښ و نه سپاره شي ٭

## اوه ويشتم باب

١ ١ دَ يهوداه دَ بادشاه يهوقيم زوي دَ يوسياه دَ بادشاهت په شروع كښ
دَ خداوند له طرف نه دا كلام په ارمياه بانډ نازل شه نو ده وِو-
٢ ٢ چه خداوند ما ته داسي وويل چه بندونه او ژغونه دَ خپل ځان دپار
٣ جوړ كړه او په خپلي غاړي كښ ئې واچوه ٣ او هغه دَ ادوم بادشاه ته
او دَ مواب بادشاه ته او دَ بني‌عمون بادشاه ته او دَ صور بادشاه او دَ
صيدا بادشاه ته دَ هغو قاصدانو په لاس ئې ورواستوه چه په اورشليم
٤ كښ دَ يهوداه بادشاه صدقياه ته راغلي وُو ٤ او نه هغو ته دَ هغو
دَ صاحبانو دپارَ تاكيد وكړه چه خداوند دَ لښكرو دَ اسرائيل الله داسي
٥ وائي چه تاسو خپلو خاوندانو ته داسي ووائي‌ږ ٥ چه ما زمكه او انسان
٦ او حيوانان چه په روي زمين دي په خپل لوي قوّت سره او په خپل اوږد

کړي بازو سره جوړ کړل او دوي ته مې هغه څیزونه و بخښل چه څما
به سترګو کښې حق ښکاریده ٦ او اوس مې دا ټولي زمکي دَ خپل خدمتګار ٦
دَ بابَل بادشاه نبوکدرضر په واک کښې کړل او دَ میدان څناوران مې
هغه ته ورکړل چه دده خدمت کوي ٧ او دا ټول قومونه به دَده او دَده ٧
دَ زوي او دَده نمسي خدمت وکړي تر هغه پوري چه دَده دَ زمکي مقرر
وقت راشي او پس به ډیر قومونه او لوي بادشاهان په ده خدمت
کوي ٨ او داسي به وشي چه هغه قوم او هغه بادشاهت چه دَ هغه ٨
سو دَ بابَل دَ بادشاه نبوکدرضر خدمت نه کوي او خپله غاړه دَ بابَل
دَ بادشاه تر زنغ دَ لاندِ نیټه نه کړي هغه قوم ته خداوند وائي زه به
په توري او په قحط او په وبا سره سزا ورکړم تر دي حده چه زه به ئي
دَده په لاس ورک کړم ٩ دي دَپارَ تاسي مه دَ خپلو نبیانو او مه دَ ٩
خپلو ننګونکیو او مه دَ خپلو خوب لیدونکیو او مه دَ خپلو جادوګرانو
او مه دَ خپلو سحرګرانو اوریِ چه تاسي به دَ بابَل دَ بادشاه خدمتګاري
و نه کړئِ ١٠ څکه چه هغوي تاسو ته دروغ نبوت کوِي چه تاسي له خپل ١٠
ملک نه لري کړِي او چه زه تاسو وشړم چه هلاک شئِ ١١ لیکن هغه ١١
قوم چه خپله غاړه دَ بابَل دَ بادشاه تر زنغ لاندِ کیږدي او دَ هغه
خدمت وکړي زه به ئي دَ هغه په زمکه کښې سره و اوسوم خداوند
وائي او هغه به ئي دهقاني وکړي او په هغه کښې به اوسي
١٢ او دَ دغو ټولو خبرو په موافق ما دَ یهوداه بادشاه صدقیاه ته ١٢
ووېل چه خپله غاړه دَ بابَل دَ بادشاه تر زنغ دَ لاندِ کیږدئِ او دَده
خدمت او دَده دَ قوم خدمت کوئِ او ژوندي اوسئِ ١٣ تاسي به په ١٣
توري او په قحط او په وبا خله سره شئِ نه او ستا خلق لکه چه
خداوند دَ هغه قوم په باب ویلي دي چه دَ بابَل دَ بادشاه خدمت
نه کړي ١٤ او دَ هغو نبیانو خبري مه اوریِ چه تاسي ته ئي کوِي لو ١٤
وائي چه تاسي دَ بابَل دَ بادشاه خدمت مه کوئِ څکه چه دوي

۱۵ ستاسي دَ ورانِدِ دروغ نبوّتونه کوي ۱۵ چه ما دوي استولِي نه دِي
خداوند وايِي مگر دوي خما په نوم دروغ نبوّت کوِي دي دَپارَ چه زه
تاسي وشړم او تاسي له هغو نبيانو سره چه تاسي ته نبوّت کوِي هلاک
۱۶ شئِ ۱۶ ما کاهنانو ته او دي ټولو خلقو ته خبره وکړه وَ مِ ويل چه
خداوند داسي فرمايِي چه دَ خپلو نبيانو مه اوريِ چه تاسي ته نبوّت
کوِي او وايِي چه گورئِ دَ خداوند دَ کور لوښي به له بابَل نه پس له
لږو مُدي نه بيرته راوړل شي څکه چه دوي تاسي ته دروغ نبوّت کوِي
۱۷ ۱۷ دَ هغو مه اوريِ دَ بابَل دَ بادشاه خدمت کويِ او ژوندِي اوسئِ
۱۸ دا ښهر دِ ځله ويرانه شِي ۱۸ او که دوي نبيان وِي او دَ خداوند
کلام دَ دوي سره وي نو خداوند دَ لښکرو ته دِ شفاعت وکړي دي
دَپارَ چه هغه لوښي چه دَ خداوند په کور کښ او دَ يهوداه دَ بادشاه
په کور کښ او په اورشليم کښ پاتي شوي دِي بابَل ته دِ لاړ نه شِي
۱۹ ۱۹ څکه چه دستينو په باب خداوند دلښکرو داسي وايِي او دَ بحر په باب او
دَ کرسيو په باب او دَ نورو لوښيو په باب چه په دي ښهر کښ
۲۰ پاتي سوِي دِي ۲۰ چه هغه دَ بابَل بادشاه نبوکدنضر وړِي نه دِي هغه
وقت چه دَ يهوداه بادشاه يکونياه زوي دَ يهوقيم او دَ يهوداه او
دَ اورشليم ټول اميران ئي له اورشليم نه وِ بابَل ته په بند بوتلل
۲۱ ۲۱ هو خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله دَ هغو لوښيو په باب چه دَ
خداوند په کور کښ او دَ يهوداه دَ بادشاه په محل کښ او په اورشليم
۲۲ کښ پاتي شوِي دِي داسي وايِي ۲۲ چه هغه بابَل ته به وَ رسولي شِي او
هلته کښ به تر هغي ورځي پوري چه زه ئي خبر نه اخلم موجود
وِي خداوند وايِي هغه وقت به ئي راواخلم او به دغه ځاي کښ به ئي بيا ورسوم

## اته ويشتم باب

۱ ۱ او په هغه کال کښ دَ يهوداه بادشاه صدقياه دَ بادشاهت په
شروع کښ دَ څلورم کال په پنځمه مياشت کښ داسي وشول چه دَ

جبعوني عزور زوی حننیاه نبي دَ خداوند په کور دَ کاهنانو او دَ ټولو
خلقو دَ وړاندِ له ما سره خبري وکړي و ني ويل چه خداوند دَ لښکرو
دَ اسرائیل الله داسي وايي ما دَ بابل دَ بادشاه ژغ مات کړي دي ۲
۳ په دوو کالونو کښ به دَ خداوند دَ کور ټول لوښي چه دَ بابل بادشاه ۳
نبوکدرځر له دي مکان يوړل بابل ته بې و رسول و دي مکان ته
به ني بيرته راورم ۴ دَ يهوداه بادشاه يکونياه زوی دَ يهوقيم هم او دَ ۴
يهوداه ټول بنديان چه بابل ته لاړل و دي مکان ته به ني بيرته راولم
خداوند وايي ځکه چه زه به دَ بابل دَ بادشاه ژغ مات کړم ۵ نو ارمياه ۵
نبي دَ ټولو کاهنانو او دَ ټولو خلقو دَ وړاندِ چه دَ خداوند په کور کښ
ولاړ وُو حننياه نبي ته وُوِ ۶ هو ارمياه نبي وويل چه آمين خداوند ۶
دِ داسي وکړي خداوند دِ ستا خبري چه تا ئي په نبوت سره خبر ورکړي
دي پوره کړي چه دَ خداوند دَ کور لوښي او هغوي چه دوي بوتلل له
بابل نه و دي مکان بيرته راوړي ۷ په دي هم اوس دا خبره واوريِ چه ۷
زه ني ستا او دَ ټولو خلقو په غوږونو کښ وايم ۸ هغو نبيانو چه له ۸
مانه او له تانه وړاندِ په وړاندنيِ زماني کښ وُو دَ ډيرو ملکونو او دَ
لويو بادشاهانو په باب دَ جنګ او دَ بلا او دَ وبا په حق کښ نبوت
کړي دي ۹ هغه نبي چه دَ سلامتي نبوت کوي هرکله چه دَ هغه نبي کلام ۹
پوره شي نو هغه نبي به معلوم شي چه په حقيقت سره هغه
خداوند استولي دي : ۱۰ نو
حننياه نبي دَ ارمياه له غاړي نه ژغ کوز کړ او مات ني کړ ۱۰
۱۱ او حننياه دَ ټولو خلقو دَ وړاندِ دا وويل چه خداوند داسي وايي چه ۱۱
زه به په دي شان دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرځر ژغ دَ ټولو قومونو له
غاړي نه په دوو کالونو کښ مات کړم پس ارمياه نبي پخپلي لاري
روان شه ۱۲ مګر دَ خداوند کلام په ارمياه نازل شه پس له هغه ۱۲
چه حننياه نبي دَ ارمياه له غاړي ژغ مات کړي وه و ئي ويل ۱۳ چه ۱۳

ورشه او حننیاه ته ووایه چه خداوند داسې وایي چه دَ لرګیو زغونه
خو تا مات کړل لیکن ته به دَ هغو په عوض کښې دَ اوسپنې زغونه
۱۴ جوړ کړې ۱۴ ځکه چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسې وایي
چه ما دَدې ټولو قومونو په غاړې دَ اوسپنې زغ واچاوه دې دَپاره چه
دوي دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرضر خدمت وکړي نو دوي به دَ هغـه
۱۵ خدمتګارې وکړي او ما دَ پټهي چارپایان هم ده ته ورکړل ۱۵ نو ارمیاه
نبي حننیاه نبي ته ووېل اي حننیاه اوس واوره خداوند ته استولی نه یې
۱۶ مګر ته دغه خلق په دروغ ویلو امیدوار کوې ۱۶ دې دَپاره خداوند داسې
وایي چه ګوره زه به دې له روي زمینه و شرم ته به په دې کال کښې
مړ شې ځکه چه تا دَ خداوند په خلاف دَ نافرمانۍ خبرې کړې دي
۱۷ ۱۷ نو هغه کال په اوومه میاشت حننیاه نبي مړ شه

## نه ویشتم باب

۱ ۱ اوس دغه دَ هغه خط خبرې دي چه ارمیاه نبي له اورشلیم نه باقي
بزرګانو ته چه بندیان شوي وُو او کاهنانو ته او نبیانو ته او هغو ټولو
۲ خلقو ته چه نبوکدرضر له اورشلیم نه په بند بابل ته بیولي وُو ۲ پس
له هغه نه چه یکونیاه بادشاه او ملکه او خواجه سراي او دَ یهوداه او
۳ دَ اورشلیم امیران او ترکانزان او پینبان اورشلیم نه تلي وُو ۳ او دَ
العسه دَ شافان زوي او دَ جمریاه زوي دَ خلقیاه په لاس چه هغوي
۴ دَ یهوداه بادشاه صدقیاه په بابل کښې و نبوکدرضر ته واستول ۴ او
ده دې چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله هغوي ټولو بندیانو ته
چه دوي مې له اورشلیم نه په بند و بابل ته بوتلل داسې فرمایي -
۵ ۵ تاسې کورونه جوړ کړئ او په هغه کښې اوسئ او باغونه ولګوئ او
۶ میوې یې خورئ ښځې کړئ ۶ او زامن او لونړې وزیږوئ او دَ خپلو
زامنو دَپاره ښځې واخلئ او خپلې لونړې میړو ته ورکړئ چه زامن
۷ او لونړې و زیږوي او هلته کښې ډېر شئ او کم نشئ ۷ او دَ هغه ښهر

خبر غواړئ چه تاسي مِ په بند ور واستولئ او دَ هغه دَپاره له خداوند
نه دُعا غواړئ چه دَ هغه په سلامتي کښ به ستاسي سلامتي وي -
۸ ځکه چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي وايي چه هغه ستاسي ٨
نبیان او ستاسي غیب ویونکي چه ستاسي په منځ کښ دي ستاسي دِ
گمراه نه کړي او خپل خوب لیدونکي چه ستاسي په ویلو خوبونهویني
مه منئ ۹ ځکه چه دوي ځما په نامه په دروغ خبرو ثبوت درکوي ما ٩
دوي استولي نه دي خداوند فرمایي
۱۰ ځکه خداوند داسي وايي چه هرکاه چه په بابل کښ اویا کالونه ١٠
تېر شي نو زه به ستاسي خبر اخستلو ته درشم او تاسو به ودغه ځاي
ته په بېرته راوستلو سره خپله ښه خبره به په تاسو باندِ ټینګه کړم
۱۱ ځکه چه زه خپلي اندیښني چه ستاسي په باب ئي کوم پېژنم خداوند ١١
وايي چه هغه دَ سلامتي اندیښني دي دَ بدئ نه دي دي دَپاره تاچه
زه تاسي ته امید بخښونکي انجام درکړم ۱۲ نو به تاسي وبولئ او لاړ به شئ او له ما ١٢
به دُعا غواړئ او زه به واورم ۱۳ او تاسي به مِ وغواړئ او وبه مِ مومئ ١٣
چه به خپل ټول زړه سره مِ ولټوئ ۱۴ او زه به له تاسو سره ملیا ١٤
شم خداوند وايي او زه به ستاسي بندیواني وګرزوم او تاسي به له
ټولو قومونو او له هغو ټولو ځایونو چه تاسي مِ ور شړلي وئ راټول کړم
خداوند وايي او زه به تاسي به هغه مکان کښ چه له هغه ځاي
نه مِ په بند راوستلئ بېرته راولم ۱۵ ځکه چه تاسي وویل چه خداوند ١٥
به بابل کښ ځمونږ دَپاره نبیان ودرولي دي ۱۶ دي دَپاره خداوند دَ ١٦
هغه بادشاه په باب چه دَ داؤد په تخت ناست دي او دَ ټولو خلق
په باب چه په دي ښهر کښ اوسي ستاسو دَ ورونړو په باب چه
له تاسو سره په بند نه لاړل داسي وايي ۱۷ خداوند دَ لښکرو داسي ١٧
وايي ګوري زه به توري او قحط او وبا په هغو باندِ واستوم او دوي به
دَ سخا انځیرو په دود جوړ کړم چه داسي بد دي چه خوړل نه شي

١٨ ١٨ او زه به له توري او له قحط او له وبا سره په هغوي پسي شم او
زه به هغوي دَ زمکي ټولو بادشاهتونو ته کړيدلو ته وسپارم چه ټولو
قومونو په منځ کښ چه دوي مِ ورشړلي دِي ځاي دَ لعنت او دَ
١٩ حيراني او دَ شپيلکي او دَ ملامتيا سبب به شي ١٩ ځکه چه دوي زما
خبري وا نه وريدلي خداوند وايي هغه وقت چه ما خپل خدمتګذار نبيان
هغوي ته ورواستول هو صبا وقتي پاځيدلي دروا مِ ستول مګر تاسي
٢٠ وا نه وريدل خداوند فرمايي ٢٠ پس تاسي اي ټولو خلقو دَ بنديواني چه
٢١ له اورشليم نه مِ بابل ته استولي يئِ دَ خداوند کلام واورئِ ٢١ خداوند
دَ لښکرو دَ اسرائيل الله دَ اخي‌اب زوي دَ قولاياه په باب او دَ صدقياه
زوي دَ معسياه په باب چه زما په نوم تاسي ته دروغ نبوت کوي داسي
فرمايي چه ګوره زه به هغه دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرضر لاس ته وسپارم
٢٢ او هغه به ئي دَ ستاسو دَ سترګو دَ وړاندِ قتل کړي ٢٢ او دَ يهوداه
ټول بنديان چه په بابل کښ دِي دَ هغو به يو لعنتي مثل جوړ کړي
او وبه وايي چه خداوند دِ تا دَ صدقياه او دَ اخي‌اب په دود کړي چه
٢٣ دَ بابل بادشاه په اور وريته کړل ٢٣ ځکه چه هغوي په اسرائيل خباثت
کړي دَي او دَ خپلو ګاونډيانو دَ ښځو سره ئي زناکاري کړي دَه او زما
په نوم ئي دروغ خبري کړي دِي چه مِ ورته کړي نه دِي زه هغه يم
چه پوهيږم او شاهد يم خداوند وايي
٢٤ ٢٤ ته نخلامي شمعياه ته هم دوايه چه خداوند دَ لښکرو دَ
٢٥ اسرائيل الله داسي فرمايي ٢٥ دي دَپارَ چه تا دَ خپل نامه دَ اورشليم
و ټولو خلقو ته او صفنياه زوي دَ معسياه کاهن او ټولو کاهنانو ته
٢٦ په دي طور خطونه واستول ٢٦ چه خداوند دَ يهويدع کاهن په ځاي ته
کاهن کړي چه تاسي دَ خداوند په کور کښ خبر اخستونکي شئِ چه ته
به هر يوه ليوني سړي او هغه چه ځان نبي ګرځي کوندي ته او
٢٧ په غړوندو کښ به ئي واچوي ٢٧ پس تاسي عنتوتي ارمياه ته چه خپل

خان نبي جوړوي ځله مو ملامت نه کړه ۲۸ ځکه چه ده په بابل کښي وما ۲۸
ته داخبر را واستاوه چه دَدي بنديوانۍ موده اوږده ده تاسو کورونه
جوړ کړئ په کښي اوسئ او باغونه ولګوئ او ميوي ئي خورئ ۲۹ اوصفنيا ۲۹
کاهن دا خط دَ ارمياه په غوږونو کښي ولــــــو ســــت

۳۰ بيا دا کلام دَ خداوند ارمياه ته ورسيد او وئي ويل ۳۱ داخبر ۳۰ ۳۱
ټولو خلقو دَ بنديوانۍ ته واستوه چه خداوند دَ نخلامي شمعياه په باب
داسي وايي دي دَپاره چه شمعياه تاسي ته نبوت وکړ او ما دَي استولي
نه دي مګر ده يوه دروغ خبره وکړه تاسي ئي اميدوار کړئ ۳۲ دي دَپاره ۳۲
خداوند داسي وايي چه ګورئ زه به نخلامي شمعياه ته او دَده اولاد ته
سزا ورکړم دَ هغه به هيڅ سړي پاتي نه شي چه دَدي قوم په منځ کښي
واوسي او هغه به هيڅري هغه نيکي چه زه به ئي له خپل قوم سره وکړم
و نه ويني خداوند وائي ځکه چه ده دَ خداوند په خلاف دَ نافرمانۍ خبره وکړه

# ديرشم باب

۱ هغه کلام چه دَ خداوند له طرف نه ارمياه ته ورسيده او ده ووي ۱
۲ چه خداوند دَ اسرائيل الله داسي فرمايي ټولي خبري چه ما درته کړي دي ۲
ته ئي په کتاب کښي وليکه ۳ ځکه ګوره هغه ورځي راځي خداوند وايي ۳
چه زه به دَ خپل قوم اسرائيل او دَ يهوداه بنديوانۍ را وګرزوم خداوند
وايي او زه به داسي وکړم چه دوي به په هغي زمکي چه دَدوي پلرونو او
نيکونو ته مي ورکړه بيرته را وګرزوم او دَ هغي وارث به شي

۴ او دا هغه خبري دي چه خداوند دَ اسرائيل او دَ يهوداه په ۴
باب وکړي ۵ چه خداوند داسي وايي موږ دَ لرزيدلو آواز آوريدلي دَي دَ ۵
دهشت او نه دَ سلامتي ۶ اوس پوښتنه وکړئ او ګورئ چه که نر زيږول ۶
کوي څه سبب دَي چه زه هر يو ميړه دَ لنګيدونکي ښځي په شان خپل
لاس په ملا ينبي وينم او ټولو څهري زيړي شوي ؟ ۷ هاي چه هغه ۷
ورځ لويه ده تر هسي حده چه دَ دغه په شان بله نشته هغه دَ ۸

٨ يعقوب دَ غم وقت دَي ليکن دي به ور نه خلاصون مومي ٨ ځکه چه
هغه ورځ به داسي وشي خداوند دَ لښکرو فرمايي چه زه به دَ هغه
ژغ ستاسي له غاړي مات کړم او ستا بندونه به وشلوم او بيا به له
٩ دد نه بيګانه خلق خدمت نه اخلي ٩ مګر دوي به دَ خداوند الله خپل
او دَ خپل بادشاه داؤد چه زه به ئي دَ هغو دَپارَ ودرم خدمت وکړي
١٠ ١٠ دي دَپارَ اي ځما بنده يعقوب مه دارېږه خداوند وايي اي
اسرائيل مه حيرانېږه چه ګوره زه به دِ له لري نه او ستا اولاد دَ
بنديوايي له زمکي نه راخلاص کړم او يعقوب به وګرزي او آرام به
١١ وکړي او آسوده به وي او هيڅوک به ئي نه داروي ١١ ځکه چه زه له تا
سره يم خداوند وايي چه خلاص کړم اګر که زه ټول قومونه چه ته
مِ په کښ تار به تار کړي تمام ئي کړم نو هم تا به تمام نه کړم مګر
زه به تا ته په انصاف سره تنبيه درکړم چه تا بي سزا بالکل پري نه ږدم
١٢ ١٢ خداوند داسي وايي چه ستا پرهار لاعلاج دَي او ستا زخم
١٣ ګران دَي ١٣ هيڅوک نشته چه ستا دعویٰ وکړي چه ته وتړلي شي
١٤ هيڅ مرهم ستا دَ پرهار دَ لګولو دَپارَ نشته ١٤ ستا ټولو يارانو ته هېره
کړي هغوي ستا طلبکار نه دِي په حقيقت سره ته مِ دَ دښمن په
دود زخمي کړي او دَ سخت زړه په شان مِ ووهلي ځکه چه ستا بدِي
١٥ ډيرِه شوه او ستا ګناه زياته شوه ١٥ ته ولي دُ خپل زخم په سبب
ناري کوي ستا درد بي دارو دَي دي دَپارَ چه ستا بدِي بي اندازه زياته
شوه او ستاسي خطاوي ډيري شوي ما له تا سره داسي کړي دِي -
١٦ ١٦ په دي هم هغه ټول چه تا نغرِي وبه نغرلي شِي او ستا ټول دښمنان
به هر يو په بندي لاړ شِي او چه تا لوټ کوي لوټ به شِي او ستا
ټول شوکونکي به شوکولو ته ورکړم او ستا ښکار کونکي به ښکار کيدلو
١٧ ته ورکړم ١٧ ځکه چه زه به تا ته بيا صحت دروبخښم او پرهار به
دِ جوړ کړم خداوند فرمايي چه هغوي ستا نوم مردود کيښود چه دغه

۱۸ صیمون دَي چه هیڅوک ئې طلبګار نشته ۱۸ خداوند داسي وايي چه ګوره
زه به دَ یعقوب خیمي چه په بند کښ دِي بیرته راورم او دَ هغه په
مسکنونو به رحم وکړم او ښهر به په خپلي غونډيِ جوړ کړي شي او
۱۹ محل به پخپل طور بادِ آباد شي ۱۹ او له هغوي به دَ شکرګذاري او دَ
خوښي کونکي آواز ووزيِ او زه به هغوي زیاتي کړم او کم به نه شي
۲۰ او زه به عـزّت ورکړم او دوي به وړوکي نه شي ۲۰ او دَ دوي اولاد
به داسي وي لکه چه په وړاندني وقت کښ او دَ هغو جماعت به څما
په حضور ټینګ وي او زه به هغو ټولو ته چه په دوي ظلم کوي سزا
۲۱ ورکړم ۲۱ او دَ دوي شاه‌زاده به هم له دوي وِي او دَ هغوي حاکم به دَ
هغو له منځ نه ووځي او زه به هغه نژدي را پريږدم او هغه به څما
دَ وړاندِ راشي څکه څوک دَي چه خپل زړه ئې لګولي دَي چه ما ته راشي
۲۲ خداوند وايي ۲۲ او تاسي به څما خلق شئ او زه به ستاسي الله شم
۲۳ ۲۳ ګوره دَ خداوند سیلئ غضب دده ووت سیلابي سیلئ چه
۲۴ دَ شریرانو په سر به پریوزي ۲۴ دَ خداوند سخت قهر تر هغه پوري
چه دا ټول څه و نه شي او دَ هغه دَ خپل زړه مقصود پوره نه کړي
نو به نه شي تاسي به په آخرو ورځو کښ په دي پوه شئ ۰

## یو دیرشم باب

۱ ۱ په هغه وقت خداوند وائي زه به دَ اسرائیل دَ ټولو ټبرو الله شم
۲ او دوي به څما خلق شي ۲ خداوند داسي وايي چه اسرائیل چه یو ټولي
وه چه له توري پاتي شوي دِي په بیابان کښ فضل بیاموند هرکله چه
۳ زه آرام ورکولو ته ورغلم ۳ خداوند له قدیم نه په ما ماندِ ظاهر شه
او وئي ویل چه ما په لوي ابدي عشق سره په تا مینه وکړه دي دَ پاره
۴ ما پخپلي مهرباني سره راکاږلي ۴ زه به دِ بیا جوړ کړم او ته به جوړ کړي
شي اي دَ اسرائیل پیغلي ته به بیا طنبل واخلي خپل څان به سنګار
۵ کړي او دَ خوشي کونکو په ګډیدلو به ورسره ووزي ۵ ته به بیا دَ سمرون

په غروبو تاکستان ولګوي او لګونکي به ولګوي او میوی به ئي خوري
٦ ٦ ځکه چه یوه ورځ به راشي چه دَ افرائیم په غره باندِ به نګهبان ناري
وکړي پورته شئ چه مونږ په صیحون باندِ دَ خداوند الله خپل ته
٧ ورشو ٧ ځکه چه خداوند داسي وايي چه دَ یعقوب دَپارَ په خوشي سره
غزل وایه او دَ قومونو دَ اوّل قوم دَپارَ ناري وکړئ منادي وکړئ حمد وکړئ
او وايئ اي خداوندَ خپل خلق دَ اسرائیل پاتي شوي خلق خلاص کړه -
٨ ٨ ګورئ زه به ئي دَ شمال له زمکي راولم او دَ زمکي له سرحدونو به
ئي راجمعَ کړم او په هغو کښ ړانده او ګډان او ښځي له هلکانو سره
او هغه چه دَ لنګانه په درد دي ټول به دلته یو لوي جماعت بیرته راشي
٩ ٩ هغوي به ژړا راشي او زاري کونکي به ئي بوزم زه به دَ اوبو دَ والو
په غاړو باندِ په یوي برابري لاري چه په دغه کښ هغوي ټوکر نه خوري
بو به ئي زم ځکه چه زه دَ اسرائیل پلار او افرائیم زما مشرزوي دَي
١٠ ١٠ اي قومونو دَ خداوند کلام واورئ او په لري جزیرو کښ منادي
کوئ او وايئ چه هغه چه اسرائیل ئي تار په تار کړ هم هغه به ئي
جمعَ کړي او لکه چه شپون دَ خپلي رمي هم هسي به ئي نګهباني وکړي -
١١ ١١ ځکه چه خداوند یعقوب په فدیي اخستلی دَي او هغه ته ئي دَ هغه
١٢ لاس نه چه ورنه زورآور وه آزادي ورکړي ده ١٢ دي دپارَ به هغوي راشي او
دَ صیحون په څوکي باندِ به سندري وايي او دَ خداوند له ښیګړي او دَ
غلي او دَ شرابو او دَ تیلو او دَ غواؤ او دَ غوایانو او دَ ګډو او دَ
وزو دَ بچیو په طرف به یوځاي سره روان شي او دَ هغوځان به دَ
١٣ سیراب باغ په دود شي او دوي به بیا هیچري غمزده نه شي ١٣ هغه
وقت به پیغلي آو ځوانان اوزاړه خلق یوځاي سره ګډیږي خوشحالي
به کوي ځکه چه زه به دَ دوي غم په خوښي بدل کړم او دوي ته به
١٤ تسلي ورکړم او دَ هغو له غم نه به ئي بیا خوشحال کړم ١٤ او زه به دَ
کاهنانو ځانونه له څربښتَ ډک کړم او زما خلق به زما له ښیګړي آسوده

ژِشي خداوند وايي
۱۵ خداوند داسي وايي چه په رامه کښ يو آواز اوريدلي شوي دَي ۱۵
دَ وير او دَ ورتڼ ژړلو راخل په خپلو هلکانو ژاړِي او دَ خپلو
هلکانو په باب له تسلّي منډلو منعَ کوِي ځکه چه هغوي نشته ۱۶ خداوند ۱۶
داسي وايي چه دَ خپلي آواز له ژړا نه او خپلي سترګي له اوښکو منعَ کړه ځکه
چه ستا دَ محنت دَپارَ اجر دَي خداوند وايي او دوي به دَ دښمنانو له زمکي
بيرته راشي ۱۷ او ستا دَ آخر په باب اميد دَي خداوند وايي چه ستا ۱۷
هلکان به په خپل سرحد کښ بيا داخل شي
۱۸ په حقيقت کښ مِ افرائيم دَ خپل ځان دَپارَ وير کونکي واوريده ۱۸
تا ما ته تنبيه راکړه او ما دَ هغه سخي يه دود چه آموخته شوي نه دَي تنبيه
وموندله ته مِ وګرزوه نو زه به وګرزم ځکه چه ته اي خداوندَ خُما الله
يي ۱۹ چه په يقين سره پس له هغه چه زه وګرزيدم نو مِ توبه وکړه ۱۹
او دَ خپلي آموخته کړي دَ وروستو مِ لاس په خپله ورانه ووهه زه شرمنده
بلکه پريشان شوم دي دَپارَ چه ما دَ خپلي ځواني ملامتيا اخستي وه -
۲۰ افرائيم خُما ګران زوي دَي څه؟ دَي لايق فرزند دَي څه؟ په يقين سره ۲۰
دَدي چه په ده مِ عيب لګاوه نو هم زه هغه په زړه او ځان سره ياد
کوم دي دَپارَ خُما کُلمي دَ هغه دَپارَ مروړلي شي زه به يقيناً په هغه
رحم وکړم خداوند وايي ۲۱ دَ ځان دَپارَ ستني ودروه دَ ځان دَپارَ ۲۱
منتي جوړي کړه هو په هغي لاري چه ته پر لاري خپل زړه ولګوه بيا
وګرزه اي دَ اسرائيل پيغلي و دي خپلو ښهرونو ته بيرته راشه -
۲۲ اي ورکي شوي لوري ته به ترڅو پوري ګرزي ځکه چه خداوند په ۲۲
زمکي باندِ يو نوي شئ پيدا کړي دَي چه ښځه به ميړه لره ګير کړي
۲۳ خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي فرمايي هرکله چه زه دَ ۲۳
هغو بنديان بيرته راولم نو دوي به لا تر اوسَ دَ يهوداه په زمکه کښ
او دَ هغه په ښهرونو کښ دَدي خبري مثل کوِي چه اي دَ صداقت

۲۴ استوګنې اې دَ پاکۍ غره خداوند دِ مبارک کړي ۲۴ او یهوداه او دَ هغه
ټول ښهرونه هغوي چه کښیان دِي او هغوي چه له رمو سره ګرزي
۲۵ هلته کښې به یو ځای سره اوسي ۲۵ ځکه چه ما ستړي ځان آسوده کړ
۲۶ او هر غمجن ځان مِ موړ کړ ۲۶ په دي زه ویښ شوم او نظر مِ وکړ
او خوب مِ راته خوږ معلوم شه
۲۷ ۲۷ ګوره هغې ورځې راځي خداوند وايي چه زه به دَ اسرائیل په
کور کښې او دَ یهوداه په کور کښې دَ انسان تخم او دَ حیوان تخم وکرم
۲۸ ۲۸ او داسي به وشي لکه چه څرنګ زه دَ هغو دَ وکښلو او دَ نړولو او
دَ اړولو او دَ برباد کولو او دَ ربړولو په څوکښې شوم هم هسي به زه ورته
۲۹ په څوکښې شم چه بنا ئي کړم او وئي لګوم خداوند وايي ۲۹ په هغو ورځو
کښې به بیا دا و نه ویل شي چه پلرونو نیکونو مو غوره انګور وخوړل او دَ
۳۰ هلکانو غاښونه پڅ شول ۳۰ ځکه چه هر یو به دَ خپلې بدکارۍ په سبب
مړ شي او هر یو چه غوره انګور خوري غاښونه به ئي پڅ شي
۳۱ ۳۱ ګوره هغه ورځې راځي خداوند وايي چه زه به دَ اسرائیل له
۳۲ ټبر سره او دَ یهوداه له ټبر سره نوی عهد وتړم ۳۲ نه دَ هغه عهد په
موافق چه ما دَ دوي له پلرونو او نیکونو سره وکړ هغه ورځ چه دَ دوي
دستګیري مِ وکړه دِي دَ پاره چه دَ مصر له زمکې ئي راوباسم او دوي
۳۳ مِ هغه عهد مات کړ اګر که زه دَ دوي میړه وم خداوند وايي ۳۳ بلکه
دا هغه عهد دَه چه زه به ئي دَ اسرائیل له ټبر سره وکړم پس له
هغو ورځو خداوند فرمايي زه به خپل تورَیت په دوي دننه کیږدم او
دَ دوي په زړونو به ئي ولیکم او زه به دَ دوي الله شم او دوي به زما اُمّت
۳۴ شي ۳۴ او دوي به بیا خپل خپل ګاونډي ته او خپل خپل ورور ته دا
خبره ورزده نه کړي چه خداوند و پیژنئ ځکه چه له وړوکیو نه به مِ تر
لویو پورې ټول واړه و پیژني خداوند وايي چه زه به دَ هغو بدکاري بخش
۳۵ ورکړم او ګناه به ئي په یاد نه کړم ۳۵ هغه خداوند داسي وايي چه دَ

ورځي د رڼرا كولو دپاره نمر مقرّر كوي او چه دَ شپي دَ روښنائي دپارَ دَ سپوږمۍ
او دَ ستورو انتظام كوي چه سمندر ته كوي هغه وقت چه دَده څپي
غورېږي كوي دَده نوم رَبُّ الأَفْوَاج دَي ۳۶ كه دا انتظام څما له وړاندِ لري ۳۶
شي خداوند وائي نو به دَ اسرائيل نسل هم څما له وړاندِ نه ختم
شي چه ټولي ورځي بيا قوم نه شي ۳۷ خداوند داسي وائي چه كه كيدلي ۳۷
شي چه پاس آسمان وكاچه شي يالاندِ دَ زمكي دَ بنيادونو انداز
ولټولي شي نو زه به هم دَ هغو ټولو كارونو په سبب چه دَ اسرائيل
ټول نسل كړي دَي رد به ئي كړم خداوند وائي
۳۸ گوره هغه ورځي راځي خداوند وائي چه دا ښهر به دَ حننئيل ۳۸
له برج نه دَ كونج تر دروازي پوري دَ خداوند دپارَ جوړ كړي شي ۳۹ او ۳۹
بيا به دَ كچلو په رسئ سره دَ هغه په برابر دَ جاريب په غونډي ووځي
تر گوعت پوري به وگرزي ۴۰ او دَ مړيو دَ لاشونو او دَ ايرو دَ ټولي خوړي ۴۰
او ټول پټي دَ قدرون تر ويالي او دَ آسونو دَ دروازي تر كونج پوري دَ
نمرخانه دَ خاي په طرف به دَ خداوند دپارَ مقدّس وِي هغه به تر
هميشه پوري .نه يستلي نه نړولي شي ✣

## دو ديرشم باب

۱ هغه كلام چه دَ يهوداه دَ بادشاه صدقياه په لسم كال چه دَ ۱
نبوكدرځر اتلسم كال وه دَ خداوند له طرف نه ارمياه ته ورسيده
۲ او هغه وقت دَ بابل دَ بادشاه لښكر دَ اورشليم قلابند كړ او ارمياه ۲
نبي دَ هغي څوكي دَ برج په غولي كښ چه دَ يهوداه دَ بادشاه په محل
كښ وه بندِي وه ۳ چه دَ يهوداه بادشاه صدقياه قيد كړي وه وئ ۳
ويل چه ته ولي نبوّت كوي او وائي چه خداي داسي وائي گوره زه به
دا ښهر دَ بابل دَ بادشاه لاس ته وسپارم او هغه به دغه واخلي
۴ او دَ يهوداه بادشاه صدقياه به دَ كسديانو له لاس نه خلاص نه شي ۴
۵ مگر دَ بابل دَ بادشاه په لاس به ضرور حواله شي او له ده سره به ۵

روبرو خبري وکړي او دَده سترګي به دَ هغه سترګي ويني او هغه
به صدقیاه و بابَل ته بوزي تر هغه پوري چه زه دَ هغه خبروانه خلم
هغه به هلته کښ اوسي خداوند وايي هرڅو چه تاسي له کسدیانو
سره جنګ وکړئ ليکن کامياب به نه شئ
٦ نو ارمیاه وُوِ چه دَ خداوند کلام په ما باندِ نازل شه او وُ ئي ٦
ويل ٧ کوره ستا تره دَ سلوم زوي حنمئیل به تا ته راشي و به وايي ٧
چه خما پټي چه په عنتوت کښ دَي دَ خپل ځان دَپارَ ئي په بيعه واخلئ
ځکه چه دَ هغه آزادولو پيرودلو ستا حق دَي ٨ نو خما دَ تره زوي ٨
حنمئیل دَ ځوکي دَ برج په غولي کښ خما څخه راغي او لکه چه خداوند
فرمايلي وه ما ته ئي وويل چه خما پټيَ چه په عنتوت کښ دَ بنيمين
په وطن کښ دَي ته ئي وپيره ځکه چه دغه ستا موروثي حق دَي او دَ
دغه آزادول ستا دَي وئي پيره نو زه وپوهيدم چه دغه دَخداوند
کلام دَي ٩ او ما هغه پټيَ چه په عنتوت کښ وه دَ خپل تره دَ زوي ٩
حنمئیل نه وپيرود او اولس مثقالَ روکي روپئِ مِ په تول سره ورکړي
١٠ او ما په قباله کښ وليکل او په هغي مِ مهر ولګاوه او ګواهان مِ ١٠
پرِ وودرول او نقدِي مِ په تلي تللي ورکړي ١١ نو ما هغه قباله واخسته ١١
چه په هغي باندِ له آئين او له دستور سره موافق مُهر لګيدلي وه او
بنده کړي وه او هغه هم چه وازه ١٢ او ما هغه قباله دَ خپل تره ١٢
دَ زوي حنمئیل دَ وړاندِ او دَ هغو ګواهانو دَ وړاندِ چه خپل نومونه ئي
په قباله ليکلي وُو دَ ټولو يهوديانو په روبرو چه دَ ځوکي دَ برج په غولي
ناست وو بروک زوي دَ نيرياه زوي دَ محصياه ته مِ وسپارله ١٣ او ما ١٣
دَ هغو دَ وړاندِ بروک ته حکم ورکړ او وَمِ ويل ١٤ چه رَبُّ الافواج دَ ١٤
اسرائیل الله داسي وايِ چه دا قبالي واخله دا قباله چه مهر پرِ لګولي
دَي او دا قباله چه خلاصه دَه او دَختي په لوښي کښ ئي کيږده چه
تر ډيرو ورځو پوري پاتي شي ١٥ ځکه چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله ١٥

داسي فرمايلي چه کورونه او پټي او تاکستانونه به بيا په دي زمکي کښ
په بيعه واخستلي شي
۱۶ ۱۶ پس له هغه چه قباله مې بروک زوي دَ نيرياه ته وسپارله دا
۱۷ مې وُوِ له خداوند نه مِ دُعا وغوښتله ۱۷ اي خداوندَ الله گوره تا بخپل
لوي قدرت او بخپل اوږد کړي بازو سره آسمانونه او زمکي جوړ کړل او
۱۸ ستا دَ وړاندِ هيڅ کار گران نشته ۱۸ ته په زرگونو باندِ مهرباني کوي او دَ
پلرونو او دَ نيکونو دَ بدکاريو بدله پس له دغو نه دَدوي دَ زامنو په
۱۹ غيږ کښ ور ورکوي الله عظيم جبار خداوند دَ لښکرو ئي نوم دَي ۱۹ په
مصلحت کښ عظيم او په کارکولو کښ قدرتناک يي ټولي لاري دَ بني آدم
ستا دَ نظر دَ وړاندِ دِي او ته هر يوه ته دَ هغه دَ لارو په موافق او
۲۰ دَ هغه دَ کارونو دَ نتيجي په قدر ورکوي ۲۰ هغه چه دَ مصر په زمکي
کښ دِ تر نن پوري او په اسرائيل کښ او په نورو خلقو کښ د نښاني
۲۱ او عجايبات ور ښکاره کړل لکه چه نن ورځ دي ۲۱ او تا خپل قوم اسرائيل
دَ مصر له زمکي نه دَ نښانو او دَ عجائبو سره او له قوي لاس او له
۲۲ اوږد کړي بازو سره او له لوي دهشت سره راويستل ۲۲ او دا ملک دِ
هغوي ته ورکړ چه دَ دغه په باب دِ دَدوي له پلرونو او له نيکونو سره قسم
۲۳ وکړ داسي زمکه چه پيِ او گبينه په کښ بهيږي ۲۳ او دوي په هغه
کښ داخل شول او مالکان ئي شول ليکن هغوي ستا آواز نه واوريده نه
ستا په تورِيت لاړه او له هغو ټولو حکمونو چه تا هغوي ته وفرمائيل هيڅ عمل ئي
۲۴ پر کړي نه دَي دي دَبارَ دا ټوله بلا دِ پرِ نازله کړي دَه ۲۴ گوره تر ښهرَ پوري
دَ هغه دَ اخستلو دَبارَ دمدمه ترله شِي او ښهر دَ کسديانو په لاس کښ
چه حنگ پرِ کوِي دَ توري او دَ قحط او دَ وبا په سبب سپارلي کيږي او هر
۲۵ څه چه تا ويلي دِي هغه وشول او گوره ته بخپله وينې ۲۵ او تا اي خداوندَ
يهوواه الله راته ويلي دِي چه هغه پټي دَ څان دَبارَ په روپايو وپيره او
شاهدان پرِ ودروه اگر که دا ښهر دَ کسديانو په قبضه کښ ورکړ شه

۲۶ ۲۷ ۲۶ نو دَ خداوند کلام ارمیاه ته ورسیده او وئي وبل ۲۷ گوره زه
۲۸ خداوند یم او دَ ټول بشر الله څما دَ وړاندِ کوم کار سخت دَي څه ۲۸ دي
دَپارَ خداوند داسي وايي چه گوره زه به دا ښهر دَ کسدیانو په لاس کښ
او دَ بابل دَ بادشاه بنوکدرضر په لاس کښ ورکړم او دي به ئي واخلي
۲۹ ۲۹ او هغه کسدِيان چه له دي ښهر سره جنگ کوي را به شِي او په دي ښهر
به اور ولگوي او و به ئي سوځي له هغو کورونو سره چه په چتونو باندِ ئي
دَ بعل دَپارَ لُبان سیځلو دَي او بیگانه خدایانو دَپارَ ئي دَ څښاک هدیي
۳۰ تويو کړي دِي چه ما په غصّه کړِي ۳۰ ځکه چه بنيِ اسرائيل او بنيِ يهوداه
له ځنيلي ځواني نه تر اوس پوري هم هغه وکړل چه څما په نظر کښ بد وُو
او بنيِ اسرائيل زه دَ خپلو لاسونو په کارونو هم په غصّه کړم خداوند وايي -
۳۱ ۳۱ چه دا ښهر له هغي ورځي چه دوي جوړ کړ تر نن ورځي پوري څما دَ
غصّي او دَ قهر سبب شوي دَي تر دي پوري چه زه هغه له خپلي
۳۲ مخي لري کړم ۳۲ دَ بنيِ اسرائيل او دَ بنيِ يهوداه دَ ټولي بدکاري دَپارَ چه دوي
او دَ دوي بادشاهانو او دَ دوي اميرانو او دَ دوي کاهنانو او دَ دوي نبيانو او
دَ يهوداه خلقو او دَ اورشليم اوسيدونکيو کړي دَي چه ما پرِ په غصّه
۳۳ کړِي ۳۳ او هغوي څما په لوري شا کړه او مخ ئي نه کړ هرڅو چه ما هغوي
ته ښوول دَ صباح پاڅيدلي ښوونه ور ته کول نو هم هغوي غوږ ونه
۳۴ نه کيښول چه زده کړه وکړي ۳۴ بلکه په هغه کور کښ چه څما په نوم وايه
۳۵ شِي دوي خپل مکروه څيزونه کيښول چه هغه ناپاک کړي ۳۵ او هغوي دَ
بعل اوچت مکانونه چه دَ بنيِ هنوم په خوړي کښ دِي جوړ کړل چه
خپلو زامنو او لوڼو له دَ مولک دَپارَ په اور کښ وگذارِي چه نه مِ
هغوي ته وفرمايل او نه مِ په زړه کښ تير شوي وه چه دوي دِ
په داسي مکروه کار سره يهوداه گناهکار کړِي
۳۶ ۳۶ په دي هم دَ دي ښهر په باب چه دَ دغه په حق تاسي وايئِ
چه دَ توري او دَ قحط او دَ وبا په سبب به دَ بابل دَ بادشاه په لاس

كښې و سپارلي شِي خداوند دَ اسرائيل الله اوس داسي وايي ٣٧ گوره زه ٣٧
به هغوي له هغو وارو زمكو چه هلته كښې مِ دوي پخپلي غصّي او پخپل
غضب او په سخت قهر سره شړلي وُو راټول كړم او به دي ځاي
كښې به ئي بيا راولم او په امان سره به ئې آباد كړم ٣٨ او هغوي به ٣٨
ځما خلق شِي او زه به دَدوي الله شم ٣٩ او يو زړه به وركړم او يوه لار ٣٩
چه له ما نه به مدام داريږي تاچه دَدوي او پس له دوي نه دَدوي
دَ زامنو ښه وِي ٤٠ او زه به له هغو سره ابدِي عهد وكړم چه زه به دَ ٤٠
دوي دَ ښيگړي كولو نه بيرته رانه شم او زه به خپله وېره دَدوي په زړو
كښې كيږدم چه دوي له ما نه بيرته ونه گرزِي ٤١ زه به دهغو په ښيگړي كولو ٤١
خوشحاله شم او په خپل ټول زړه او په خپل ټول ځان سره به يقيناً هغوي په دي زمكي
كښې ولگوم ٤٢ ځكه چه خداوند داسي وايي لكه چه په دي قوم مِ دا ټولي ٤٢
لوي بلاوي نازلي كړي دِي هم هسي به زه له هغو سره هغه ټولي نيكي
چه ما ئې وعدي ورسره كړِي دِي وكړم ٤٣ او په دي زمكه كښې چه تاسي ٤٣
وائِي چه ويران دِي او نه انسان شته نه حيوان او دَ كسديانو په لاس
سپارلي دَه پټي به بيا په قيمت رانيولي شِي ٤٤ دَ بنيمين په زمكي كښې ٤٤
او دَ اورشليم په اطرافو كښې او دَ يهوداه په ښهرونو او دَ غره په ښهرونو
كښې او دَ خوړي په ښهرونو كښې او دَ سهيل په ښهرونو كښې به خلق
په پيسو روكي روپئِ وركړي په بيعه به ئې واخلي او قبالي به وليكي او
مُهر به پرِ و لگوي او دَ شاهدانو شاهدِي به پري ولي ځكه چه زه
به دَ هغو دَ بنديوانِي حال بدل كړم خداوند وايي ❖

## دري ديرشم باب

١ دَ خداوند كلام بيا دوباره په ارمياه باندِ نازل شه هغه وقت چه ١
دَي دَ ځوكي دَ برج په غولي كښې بند وه او ده وُوِ ٢ خداوند چه دا كوِي ٢
خداوند چه دَ هغه جوړوونكيَ چه وئې دروِي داسي وايي يَهوَه ئې نوم
دَي ٣ چه ته مِ و بولي نو زه به ځواب دركړم او لوي او پټ ځيزونه ٣

۴ چه ته يې نه پېژنې زه به يې درباندِ ظاهر کړم ۴ ځکه چه خداوند دَ
اسرائيل الله دَدې ښهر دَکورونو په باب اودَ يهوداه دَ بادشاهانو
دَکورونو په باب چه دَ دمدمو او دَ تورو په سبب نړيدلي دِي داسي وائِي
۵ ۵ هغوي له کسديانو سره وجنګيدلو ته راځِي ليکن هغوي دَ سړيو له
مړيو دکولو ته هغوي چه ما پخپل غضب او قهر سره قتل کړي دِي
اوچه دَ هغو دَ ټولي بديئِ دَپارَ ما له دې ښهرَخپل مخ پټ کړي دي
۶ ۶ګوره زه به هغه ته صحت او شفا و بخښم زه به يې جوړ کړم اوډيرولي
۷ دَ سلامتي او دَ رښتيني به په هغو باندِ ظاهر کړم ۷ او زه به دَ يهوداه
دَ بنديواني اودَ اسرائيل بنديواني راوګرزوم او په داسي شان به هغوي
۸ بنا کړم لکه چه وړومبي وُو ۸ اوزه به هغوي دَ هغو له بديو چه له ما
ئې خطا کړي دِي پاک کړم او زه به دَدوي ټولي بدکاريِ چه له مائې په
خطا کړي دِي او له هغو چه دوي را نه تقصيروار شول معاف به ئې کړم
۹ ۹ او هغه به ځمايو ښادِي نوم وِي چه دَ زمکي دَ ټولو قومونو
دَوړاندِ به دَ ثنا او دَ عزّت باعث شِي هغه وقت چه دوي هغه ټولي
نيکي چه زه ئې ورسره کوم واورِي او دَ هغې ټولي ښيګړي او سلامتي
په سبب چه زه ئې دَ هغې دَپارَ کړم نو دوي به وډاريږي او وبه لړزيږي
۱۰ ۱۰ خداوند داسي وائِي چه په دې مکان کښ چه تاسي ورنه وائِي چه
ويران دَي نه انسان شته نه حيوان او دَ يهوداه په ښهرونو کښ او دَ
اورشليم په بازارونو کښ چه ويران دِي چه هلته کښ انسان نشته
۱۱ نه اوسيدونکي نه حيوان ۱۱ دَ خوښي آواز دَ خوشحالي آواز به واورَوه شِي
دَ زلمي آواز دَ ناوي آواز دَ هغو آواز چه وائِي چه دَ لښکرو دَ خداوند
ثنا وکړئِ ځکه چه خداوند ښه دَي او رحمت ئې ابدي دَي هو دَ هغو
آواز چه دَ خداوند په کور کښ دَ شکرګذارِي قرباني راوړِئ ځکه چه
زه به دَدې زمکي بنديواني را وګرزوم لکه چه په شروع کښ وه خداوند
۱۲ وائِي ۱۲ خداوند دَ لښکرو داسي وائِي چه په دې مکان کښ چه بې انسان

او بې‌حیوانَ دَي او ویران دَي او دَده په ټولو ښهرونو کښې به دَ شپنو
دَ اوسیدلو مکان شِي چه خپلې رمې پنډوِي ۱۳ دَ کوهستان په ښهرونو ۱۳
کښې او دَ خوړې په ښهرونو کښې او دَ سُهیل په ښهرونو او دَ بنیمین په
زمکې کښې او دَ اورشلیم په اطرافو کښې او دَ یهوداه په ښهرونو کښې به
رمې دَ ګنړونکیو تر لاس دَلاندِ بیا تېرې شِي خداوند وایِي
۱۴ ګورئِ هغه ورځې راځِي خداوند وایِي چه زه به هغه ښه خبره ۱۴
چه ما دَ اسرائیل وتبر ته او دَ یهوداه وکورمې ته مِ وېلې دَه پوره به
ئې کړم ۱۵ په هغو ورځو کښې او په هغه وقت به زه دَ داؤد دَپاره دَ ۱۵
صداقت ښاخ وټوکوم او دَي به په زمکې کښې په عدالت او صداقت
سره کار وکړِي ۱۶ په هغو ورځو کښې به یهوداه نجات مومِي او اورشلیم ۱۶
به په سلامتۍ سره سکونت وکړِي او دَ هغه به دا نوم وایه شِي خداوند
ځمونږ صداقت ۱۷ ځکه چه خداوند داسې وایِي چه داسې به نه وِي چه ۱۷
دَ اسرائیل دَ تبر په تخت باندِ دَ کښېناستلو دَپاره دَ داؤد ځخه به دَ
سړِي حاجت وِي ۱۸ او ځما له حضور نه هم له کاهنانو او له لاویانو ۱۸
نه چه ځما دَ وړاندِ سېځونکې قربانۍ تېرې کوِي او هدیې پېښې کوِي او دَ
همېشه ذبح کوِي دَ سړِي حاجت به نه وِي
۱۹ بیا دَ خداوند کلام ارمیاه ته ورسیده او وِئې چه خداوند ۱۹
داسې وایِي ۲۰ چه که تاسې ځما دَ ورځې عهد او ځما دَ شپې عهد ماتولې ۲۰
شئِ چه ورځ په خپل وقت او شپه په خپل وقت نه وِي ۲۱ نو داسې به ۲۱
هم وِي چه هغه عهد چه ما له خپل بنده داؤد سره کړې دَي مات
کړې شِي چه دَده په تخت باندِ بادشاهِي کولو ته زوې نه وِي او له لاویئ
کاهنانو سره هم چه ځما خدمتګاران دِي ۲۲ لکه چه دَ آسمان لښکر په ۲۲
ګنړلو کښې نه راځِي او دَ دریاب شګې نه پېوندلې کیږِي هم هسې به زه دَ
خپل بنده داؤد نسل ته او لاویانو ته چه خدمت مِ کوِي زیاتې توب
ورکړم ۲۳ بیا دَ خداوند کلام ارمیاه ته ورسیده وئې ویل ۲۴ چه تا دغه ۲۳ ۲۴

نه ولیدل څه؟ چه دا خلق څه وائي چه هغه دوه تبرې چه خداوند غوره
کړي دي هم ده هغې ردي کړې هم هسې دَي څما امّت سپک گڼلي دي چه
۲۵ گویا کښ دَ هغه په نزد هغوي به قوم پاتې نه وي ۲۵ خداوند داسي وائي
چه له ورځي او له شپې سره څما عهد نه وي اوکه ما دَ آسمان او دَ
۲۶ زمکي حکم مقرّر کړي نه وي ۲۶ نو زه به دَ یعقوب اولاد اوخپل بنده
داؤد رد کړم تر دي حده چه زه به دَ ابراهیم او دَ اسحاق او دَ یعقوب
په نسل باندِ دَ حکومت کولو دَپارَ دَ دوي له فرزندانو هیڅ یو نه ونیسم
بلکه زه به دَ هغوي بندیواني بدله کړم او رحم به پرې وکړم ❊

## څلور دیرشم باب

۱ آ هغه کلام چه خداوند له طرف نه په ارمیاه نازل شه هغه وقت چه
دَ بابل بادشاه نبوکدرضر او دَ هغه ټول لښکر او دَ هغه دَ ملک ټول
بادشاهتونه چه دَ ده تابع وه او ټول قومونه له اورشلیم او دَ هغه له
۲ ټولو ښهرونو سره جنګیدل او هغه وویل ۲ چه خداوند دَ اسرائیل الله
داسي وائي چه لاړ شه او دَ یهوداه له بادشاه صدقیاه سره خبري وکړه
او ورته ووایه چه خداوند داسي وائي گوره زه به دا ښهر دَ بابل دَ بادشاه
۳ په لاس کښ کړم او هغه به ئې په اورکښ وسوځي ۳ او ته به دَ هغه
له لاس نه خلاص نه شي یقیناً به ونیولې شي او دَ هغې لاس ته به
و سپارَه شي او سترګي به دَ بابل دَ بادشاه سترګي ووینی او هغه به
۴ روبرو در سره خبري وکړي او ته به بابل ته لاړ شي ۴ په دي هم اي دَ
یهوداه بادشاه صدقیاه دَ خداوند کلام واوره خداوند ستا په باب داسي
۵ وئیلي دي ۵ چه ته به په توري مړ نه شي ته به دَ امن په حال کښ مړ
شي او لکه چه ستا دَ پلرونو او نیکونو دَپارَ او دَ هغو بادشاهان دَپارَ
چه له تا نه وړاندِ وُو خوشبوئي سیځلي ستا دَپارَ به ئې هم وسوځي او په
تا به ویر وکړي اوو به وائي هاي خاوندَ ځکه چه ما دا خبره ویلي ده خداوند
وائي ۶ نو ارمیاه نبي دا ټولي خبري دَ یهوداه بادشاه صدقیاه ته په اورشلیم

کښې وکړي ، هغه وقت چه دَ بابل دَ بادشاه لښکر له اورشلیم نه او دَ ۷
یهوداه له ټولو ښهرونو چه پاتي وُو او له لکیس او له عزیقه سره جنګیدل
ځکه چه دا مضبوط ښهرونه دَ یهوداه له ښهرونو پاتي وُو
۸ هغه کلام چه دَ خداوند له طرفَ ارمیاه ته ورسیده پس له ۸
هغه چه صدقیاه بادشاه دَ اورشلیم له ټولو خلقو سره عهد وکړ چه
دَ هغو دَ آزادي منادي وکړي ۹ چه هر یو دِ خپل غلام او هر یو دِ ۹
خپله وینځه عبراني سړي او عبراني ښځه دِ آزادي کړي هیڅوک دِ یخپل
یهودي ورور نه خدمت نه اخلي ۱۰ او چه ټولو سردارانو او ټولو خلقو ۱۰
چه په دې عهد کښې ګډ وُو واوریدل چه هر یو دِ خپل غلام او خپله
وینځه آزاد کړي او بیا دِ له هغو خدمت نه اخلي نو و ئي منل او پرې
ئي ښودل ۱۱ مګر پس له هغه دوې وګرزیدل او هغه غلامان او وینځې ۱۱
چه هغوي ئي آزاد کړي وُو و ئي ګرزول او بیرته ئي راوستل او تابع ئي
کړل چه مریونه او وینځې وي ۱۲ نو د خداوند ۱۲
کلام د خداوند له طرفُ په ارمیاه نازل شه او
و ئي ویل ۱۳ خداوند دَ اسرائیل الله داسي وائي چه ما ستاسي له ۱۳
پلرونو او له نیکونو سره هغه ورځ چه دوي مِ دَ مصر له زمکي نه
او له غلامخاني نه راویستل په دې ویلو مِ عهد وکړ ۱۴ چه دَ اوو ۱۴
کالونو په آخر کښې له تاسو نه دِ هر یو خپل ورور عبراني لره چه
ستا په لاس خرڅ کړي شوي وِي آزاد کړي او هرکله چه هغه شپږ
کاله ستا خدمت کړي دَي نو هغه له خپل ځانَ آزاد کړه پرېږده مګر
ستاسو پلرونو او نیکونو نه واوریدل نه ئي خپل غوږونه کینښول ۱۵ او ۱۵
هم نن ورځ تاسي وګرزیدلي او تاسي ځما په سترګو کښې راستي کړي
وه چه هر یوه خپل ګاونډي ته دَ آزادئِ منادي ورکړه او تاسو په
هغه کور کښې چه ځما په نوم باله شِي ځما په حضور مو عهد ترلي
وه ۱۶ لیکن تاسي بیا وګرزیدلِ ځما نوم مو ناپاک کړ او هر یو خپل ۱۶

غلام اوخپله وينځه چه هغوي ئې په خپلي مرضي سره آزاد کړي وُو بيا
ئې وګرزول او تابع ئې کړل چه هغوي ستاسو دَپارَ مريونه او وينځي
۱۷ شي ۱۷ دي دَپارَ خداوند داسي واېي چه تاسي ځما نه واوريدل چه
هر يو دِ ورور خپل او هر يو دِ خپل ګاونډي ته دَ هغه دَ آزادي
منادي ورکړي ګوره زه تاسو ته دَ توري او دَ قحط او دَ وبا دَ آزادي
منادي درکوم او زه به تاسي دَ زمکي و ټولو بادشاهنونو ته کړيدلو
۱۸ و سپارم ۱۸ او زه به هغه سړي چه ځما عهد ئې ماته کړي دَي او دَ
هغه عهد خبري چه ځما په حضور ئې تړلي وي پوره کړي ئې نه دِي
هرکله چه سخي دوه ټوټي کړي او دَ هغو دوو ټوټو په منځ کښ تير
۱۹ شي ۱۹ دَ يهوداه سرداران او دَ اورشليم سرداران او خواجګان او
کاهنان او دَ زمکي ټول خلق چه دَ سخيو دَ ټوټو له منځ نه تيرشول
۲۰ ۲۰ هو زه به دوي دَ دوي دَ دښمنانو په لاس کښ: او دَ هغو په لاس
کښ چه دَ دوي دَ ځان غوښتونکي دِي وسپارم او دَ دوي مړي به دَ هوا
۲۱ دَ مرغانو او دَ زمکي دَ درندګانو خوراک وِي ۲۱ او زه به دَ يهوداه بادشاه
صدقياه او دده سرداران دَ دوي دَ دښمنانو په لاس کښ او دَ
هغو په لاس چه دَ دوي دَ ځانونو غوښتونکي دِي او دَ بابل دَ بادشاه
۲۲ دَ لښکر په لاس کښ چه تاسي ئې پريښوي لاړ شه وسپارم ۲۲ ګوري
زه به حکم وکړم خداوند واېي او هغوي به بيا په دي ښهر را وګرزوم
او هغوي به ور سره وجنګيږي او وا به ئې خلي او په اورکښ به ئې وسيځي
او زه به دَ يهوداه ښهرونه يوه ويرانه کړم چه يو اوسيدونکي په کښ نه وِي

## پنځه ديرشم باب

۱ ۱ هغه کلام چه دَ يهوداه دَ بادشاه يهوقيم زوي دَ يوسياه په ورځو
۲ کښ دَ خداوند له طرف نه ارمياه ته ورسيده او وئې ويل ۲ چه ته
دَ ريکابيانو کور ته لاړ شه او خبري ور سره وکړه او دَ خداوند په
کور کښ ئې راوله دَ هغه له کوټيو دَ يوي په منځ کښ او شراب

۳ پړي وڅښئِ ۳ نو ما یزنیاه زوي دَ ارمیاه زوي دَ حبضنیاه اوَ دغه
ورونړه او ټول زامن اوَ دَ ریکابیانو ټول ټبر مِ له ځان سره اخستي
۴ ۴ او دوي مِ دَ خداوند په کور کښ دَ مردِ خدا دَ یجدلیاه ځوي دَ حنان
دَ زامنو په کوټي کښ راوستل چه دَ سردارونو وکوټیو ته نژدي وه چه
دَ سلوم دَ زوي معسیاه دَ دربان دَ کوټي دَ پاسَ وه ۵ او ما دَ شرابو
ډکي پیالي او کاسي دَ ریکابیانو دَ زامنو دَ وړاندِ کیښودلي او ورته وِمِ
۶ ویل چه شراب وڅښئِ ۶ لیکن هغو وویل چه شراب نه وڅښو ځکه چه
څمونږ پلار یوناداب زوي دَ ریکاب مونږ ته وئِ ویل داحکم ئِي راکړ
۷ چه تاسي شراب مه څښئِ نه تاسي نه ستاسي زامن ترهمیشه پوري ۷ مه
کور جوړوئِ مه تخم کرئِ مه تاکونه لګوئِ مه ئِي اخلئِ لیکن ستاسي
ټولي ورځي په کیږدیو کښ اوسئِ دي دَپارَ چه په کومه زمکه کښ چه
۸ تاسي مسافران یئِ تر ډیرو ورځو پوري ژوندي اوسئِ ۸ نو مونږ دَ خپل
پلار یوناداب زوي دَ ریکاب آواز اوریدلي دَي هرڅه چه ده مونږ
ته حکم راکړي دَي چه مونږ او څمونږ ښځي او څمونږ زامن او لوڼي
۹ دِ ټولي ورځي شراب نه څښي ۹ او مونږ دِ دَ خپلي استوګني دَپارَ
۱۰ کورونه جوړ نه کړو او مونږ دِ تاکستان او پټي او تخم نه ولرو ۱۰ مګر
مونږ په کیږدیو کښ اوسیدلي یو او مونږ فرمانبرداري کړي دَه او هرڅه
چه څمونږ پلار یوناداب مونږ ته حکم راکړ مونږ په هغه باندِ عمل کړي
۱۱ دَي ۱۱ لیکن داسي وشول چه دَ بابل بادشاه نبوکدرځر په دي زمکي
را وخوت نو مونږ وُوِچه راشئِ چه مونږ دَ کسدیانو دَ فوځ دَ ویري
نه اوَ دَ ارامیانو دَ فوځ له ویري نه اورشلیم ته لاړ شو هم هسي مونږ
په اورشلیم کښ اوسو
۱۲ ۱۲ نو دَ خداوند کلام په ارمیاه نازل شه او وئِ ویل چه رب
۱۳ دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي وائِي ۱۳ چه لاړشه او دَ یهوداه سړیو
اوَ دَ اورشلیم اوسیدونکیو له دا وایه تاسي به څما نصیحت قبول نه کړئِ

١٤ څه ؟ چه ښما خبري واورئِ خداوند وايي ١٤ هغه خبري چه يوناداب زوي
دَ ريكاب خپلو زامنو ته وفرمايلي چه شراب مه ښبئِ نو دوي په ځاي
راوړِي چه دوي تر ننِ ورځي شراب نه ښبي بلكه دوي دَخپل پلار
حكم منِي مگر تاسي ته ويلي دِي صباح وقتِي پاځيدلي و مِ ويل او تاسو
١٥ مِ وانه وريدل ١٥ څكه چه ماخپل ټول خدمتگذار نبيان تاسي ته
دراستولي دِي صباح وقتِي پاځيدلي دروا مِ استول او و مِ ويل چه
تاسي هر يو له خپلي بدي لاري راوگرزئِ او خپل كارونه آراسته
كانړئِ او په بيگانه خدايانو پسي مه ځئِ چه خدمت ئِي وكړئِ او تاسي
به په هغه زمكه چه ما تاسي ته او ستاسي پلرونو او نيكونو ته
١٦ وركړله واوسئِ مگر تاسي نه غوږونه كيښودل نه مو ښما واوريدل ١٦ دبي
دَپارَ چه يوناداب دَ بن ريكاب زامنو دَخپل پلار حكم چه دوي ته ئِي
١٧ وركړي وه په ځاي راوړي دَي ليكن دي قوم مِ اوريدلي نه دَي ١٧ دي
دَپارَ خداوند دَ لښكرو دَ اسرائيل الله داسي وايي گوره زه به په يهوداه
او دَ اورشليم په ټولو اوسيدونكو باندِ هغه واړه بلا چه ما هغوي ته
ويلي وه راولم څكه چه ما هغوي ته ويلي وه مگر هغوي اوريدلي نه دي
او ما هغه رابللي دِي مگر ځواب ئِي راكړي نه دي
١٨ ١٨ او ارمياه دَ ريكابيانو وَ ټبر ته ووِ چه خداوند دَلښكرو دَاسرائيل
الله داسي وايِي دي دَپارَ چه تاسي دَخپل پلار يوناداب حكم منلي دي
او دَده په ټولو وصيتونو مو عمل كړي دَي او هرڅه چه تاسي ته
١٩ ئِي و فرمائيل تاسي كړي دي ١٩ دي دَپارَ خداوند دَ لښكرو دَ
اسرائيل داسي وايِي چه دَ يوناداب بن ريكاب دَپارَ د داسي سړيو
كموالي چه ښما په حضور دريږي هيڅري به نه وِي ٭

## شپږ ديرشم باب

١ ١ او داسي وشول چه دَ يهوداه دَ بادشاه يهويقيم زوي دَ يوشياه په
څلورم كال كښِ دا كلام دَ خداوند له طرف نه ارمياه ته ورسيده

او وئي ویل ۲ چه دَ کتاب یو ملاطفه دَ ځان دپارَ واخله او ټولي خبري ۲
چه ما دَ اسرائیل په خلاف او دَ یهوداه په خلاف او دَ ټولو قومونو
په خلاف تاسي ته کړي دِي له هغي ورځي چه ما درته ووِ هو دَ یوسیاه
له ورځو نه ترنن ورځي پوري په هغه کښ ولیکه ۳ کوندي چه دَ ۳
یهوداه ټبر به دَ هغو ټولو بلاؤ چه زه ئي په هغو باندِ دَ نازل کیدلو
اراده لرم واوري چه دوي هر یو له خپلي بدي لاري را وګرزي او زه
دَ هغو بدي او خطا معاف کړم ۴ پس ارمیاه باروک زوي دَ نیریاه ۴
لره وباله او باروک ټول خبري دَ خداوند دَ ارمیاه له خولي چه ئي
وبلي وي په هغه ملاطفي دَ کتاب کښ ولیکلي ۵ او ارمیاه باروک ته ۵
حکم ورکړ او وئي ویل چه زه خو قید یم زه دَ خداوند کور ته ورتلي
نه شم ۶ مګر ته ورشه او دَ خداوند هغه خبري چه تا ځما له خولي نه ۶
په هغه ملاطفه کښ لیکلي دِي دَ خداوند په کور کښ او دَ ټول
یهوداه دَ وړاندِ هم چه له خپلو ښهرونو راغلي دي دَ روژي په ورځي
دَ خلقو دَ وړاند ئي ولوله ۷ کوندي دَ دوي زاري دَ خداوند دَ وړاندي ۷
پربوځي او هر یو به له خپلي بدراهي نه را وګرزي ځکه چه دَ خداوند
غضب او قهر چه دي قوم ته ئي آورولي دي لوي دي ۸ او باروک ۸
زوي دَ نیریاه هرڅه چه ارمیاه نبي ورته فرمایلي وُو دَ هغو په شان
ئي وکړل او دَ خداوند په کور کښ ئي هغه خبري دَ خداوند چه په
کتاب کښ لیکلي وي واورولي ۹ او دَ یهوداه دَ بادشاه یهوقیم بن یوشیاه ۹
په پنځم کال په نهمه میاشتي کښ داسي وشول چه ټولو خلقو دَ
اورشلیم او هغو ټولو خلقو چه دَ یهوداه له ښهرونو واورشلیم ته
راغلي وُو دَ خداوند دَ وړاندِ دَ روژي منادي وکړه ۱۰ نو باروک په هغه ۱۰
کتاب کښ دَ ارمیاه خبري دَ خداوند دَ کور په منځ کښ دَ کاتب جمریاه
بن شافن په کوټه کښ دَ پاس غولي په منځ کښ دَ خداوند دَ کور دَ
نوي دروازي په آستاني باندِ دَ ټولو خلقو په غوږونو واورولي

١١ ١١ چه میکایاه زوي دَ جمریاه زوي دَ شافن دَ خداوند ټولي خبري
١٢ چه په هغه کتاب کښ وي آوریدلي ١٢ نو هغه دَ بادشاه کور ته کوز
شه دَ کاتب کوټي ته ورغي او کوره ټول سرداران یعني الیشمع کاتب
او دلایاه زوي دَ شمعیاه او الناتن زوي دَ عکبور او جمریاه زوي دَ
شافن او صدقیاه زوي دَ حننیاه او ټول سرداران هلته کښ ناست
١٣ وُو ١٣ نو میکایاه هغه ټولي خبري چه ده آوریدلي وي هغه وقت
چه بروک کتاب دَ خلقو په غوږونو کښ ولوست ورته ئي ظاهري کړي
١٤ ١٤ او ټولو سردارانو یهودي زوي دَ نتنیاه زوي دَ شلمیاه زوي دَ
کوشي باروک ته واستاوه چه هغه ملاطفه چه تا دَ خلقو دَ وړاندِ
اورولي دَي په خپل لاس کښ راواخله او راشه نو باروک زوي دَ
١٥ نیریاه هغه ملاطفه پخپل لاس کښ واخستله ورغي ١٥ او هغوي ده
ته وُوِ چه اوس کښینه او دغه ځمونږ په غوږونو کښ ولوله نو
١٦ باروک هغه دَ هغو په غوږونو کښ ولوست ١٦ او داسي وشول هرکله
چه هغوي هغه ټولي خبري اوریدلي وي نو پخپل منځ کښ سره وویریدل
او باروک ته ئي وویل چه دا ټولي خبري به په تحقیق سره بادشاه ته
١٧ څرګندي کړو ١٧ او دا ئي وویل له باروک نه ئي پوښتنه وکړه چه نه
١٨ مونږ ته ووایه چه تا دا واړه خبري دَ هغه له خولي نه څله ولیکلي ١٨ نو
باروک هغوي ته وویل چه هغه به دغه ټولي خبري ما ته په خپلي
١٩ خولي کولي او ما په سیاهي سره په کتاب کښ لیکلي ١٩ نو سردارانو
باروک ته وویل چه لاړ شه او ځان پټ کړه بي ستا او ارمیاه نه
٢٠ دِ نور هیڅوک خبر نه وِي چه تاسي چرته یئِ ٢٠ او هغوي بادشاه ته
په غولي کښ ور ننه وتل مګر دوي هغه ملاطفه دَ الیشمع کاتب په
کوټيِ کښ کیښودله او ټولي خبريِ دَ بادشاه په غوږونو کښ واورولي
٢١ ٢١ نو بادشاه یهودِي واستاوه چه ملاطفه راوړِي او ده هغه دَ الیشمع
کاتب له کوټي نه راوړه او یهودِي دَ بادشاه په غوږونو کښ او دَ

ټولو سردارانو په غوږونو کښ چه دَ بادشاه په حضور ولاړ وُو ولوستله
۲۲ او بادشاه دَ ژمي په محل کښ ناست وه په نهمه میاشت او ۲۲
نغرِي دَ ده په حضور بلیده ۲۳ او داسي وشول چه یهوړِي درې څلور ۲۳
ورقې ولوستي نو ده هغه په چاړي پرېکړِ او دَ نغرِي په اور کښ ئې
وغورزاوه تر دې حده چه ټول ملاطفه دَ نغرِي په اور نیسته شه
۲۴ نو نه دوي وډاریدل او نه ئې جامي څیري کړِي نه بادشاه نه دَ ده ۲۴
له نوکرانو نه کوم یوه چه دا ټولي خبري ئې اوریدلي وي ۲۵ مګر الناتن او ۲۵
دلایاه او جمریاه بادشاه ته عرض وکړ چه ملاطفه دِ نه سوځِي مګر
وائې نه وریدل ۲۶ او بادشاه شاهزاده یرحمي‌ایل ته او سرایاه زوي دَ ۲۶
عزري‌ایل ته او شلمیاه زوي دَ عبدیل ته حکم ورکړ چه باروک کاتب
او ارمیاه نبِي ونیسيِ مګر خداوند پټ کړِل
۲۷ او پس له هغه چه بادشاه ملاطفه او هغه خبري چه باروک ۲۷
دَ ارمیاه له خُلي نه لیکلي وي وسیځله دا کلام دَ خداوند ارمیاه ته
ورسیده ۲۸ او وئې ویل چه نه بله ملاطفه دَ ځان دَ پاره واخله او په ۲۸
دغه کښ هغه ټولِي وړاندنِيِ خبري چه په وړاندنِي ملاطفه کښ وي
چه دَ یهوداه بادشاه یهویقیم سیځلي ده ولیکه ۲۹ او دَ یهوداه بادشاه ۲۹
یهویقیم ته ووایه چه خداوند داسي وائِي چه تا خو دا ملاطفه وسوزوله
او ویلي دِ دي چه تا په هغه کښ داسي څله لیکلي دِي چه یقیناً به
دَ بابل بادشاه راشِي او دا زمکه به خرابه کړِي او داسي به ئې ویرانه
کړِي چه نه به انسان نه حیوان په کښ پاتې شِي ۳۰ څکه دَ یهوداه دَ ۳۰
بادشاه یهویقیم په باب خداوند داسي وائِي چه دده له نسلَ به هیڅوک
پاتي نه شِي چه دَ داوُد په تخت کښیني او دَ ده مړِي به وغورزاوه شِي
چه دَ ورځي ګرمِي ته او دَ شپي یخِي ته ۳۱ او زه به ده ته او دَ ده ۳۱
نسل او دَ ده نوکرانو ته دَ دوي دَ بدِي په سبب سزا ورکړم او زه به
په دوي باندِ او دَ اورشلیم په اوسېدونکیو او دَ یهوداه په خلقو

هغه ټولي بلاوي چه ما ورته ویلي وِي نازلي کړم مګر هغو نه واوریدل
۳۲ ۳۲ نو ارمیاه بله یوه ملاطفه واخستله باروک زوي دَ نیریاه کاتب
ته ئي ورکړه او دغه دَ هغه کتاب ټولي خبري چه دَ یهوداه بادشاه
یهویقیم په اورکښ سیځلي وه دَ ارمیاه له خولي ئي په کښ ولیکلي
او بي دَ هغوي نوري هم داسي ډیري خبري په کښ زیاتي کړي ❖

## اوه دیرشم باب

۱ ۱ او صدقیاه بادشاه زوي دَ یوشیاه چه دَ بابل بادشاه نبوکدرضر دَ
یهوداه په زمکه کښ بادشاه کړي وه دَ کونیاه زوي دَ یهوقیم په ځاي
۲ ئي. بادشاهي کوله ۲ لیکن نه ده نه دده نوکرانو نه دَ ملک خلقو دَ
خداوند هغه خبري واوریدي چه دَ ارمیاه نبي په معرفت وویلي-
۳ ۳ او صدقیاه بادشاه له یهوکل زوي دَ شلمیاه او صفنیاه زوي
دَ معسیاه کاهن ارمیاه نبي ته واستول چه اوس ځمونږ دَ پاره له
۴ خداوند خپل الله نه دُعا وغواړه ۴ لا تر اوسَ پوري ارمیاه دَ خلقو
په منځ کښ تله راتله کول ځکه چه هغوي دَي په بندیخاني اچولي نه
۵ وه ۵ هغه وقت دَ فرعون لښکر له مصرَ وتلي وه. او چه کِسدیانو
چه دَ اورشلیم قلابندي کوله دَ هغه شهرت ئي واوریده نو له
۶ اورشلیم نه کوچ وکړ ۶ نو دا کلام دَ خداوند ارمیاه نبي ته ورسیده
۷ او وئي ویل ۷ چه خداوند دَ اسرائیل الله داسي وايي چه تاسي دَ یهوداه
بادشاه ته چه تاسي ئي ځما په لوري راواستولئِ چه سوال وکړئِ داسي
وایئِ کوره دَ فرعون لښکر چه ستاسي دَ مددګارِي دَ پارَ در وتلي دي
۸ بیرته خپل وطن مصر ته به وګرزي ۸ او کسدیان به بیا راشي له دي
۹ ښهر سره به وجنګیږي او وا به ئي خلي او په اور به ئي وسوځي ۹ خداوند
داسي وايي چه تاسي خپل ځانونه په دي خبري مه غولوئِ چه ضرور
۱۰ به کسدِي له مونږ نه لار شِي ځکه چه هغوي به لار نه شِي ۱۰ اګر که
تاسي دَ کِسدیانو ټول لښکر چه له تاسي سره جګړیږي وهلي وئِ او

له هغو نه هله ژوبل شوي خلق پاتې شوي وي نو هم هغوي به هريو
له خپلې خیمې نه پورته شوي وو او دا ښهر به ئې په اور سیځلي وُو
١١ او داسې وشول چه هر کله چه دَ کسدیانو لښکر دَ فرعون ١١
دَ فوځ له مخې له اورشلیم نه ئې کوچ کړي وه ١٢ نو ارمیاه دَ بنیمین ١٢
دَ زمکې ورتلو ته له اورشلیم نه و ووت چه خپله حصه دَ قوم په
منځ کښې له هغه ځاي نه واخلي ١٣ او چه دَي دَ بنیمین په دروازي ١٣
کښې وه هلته کښې دَ څوکیدارانو یو سردار وه چه نوم ئې اریاه زوي
دَ شلمیاه زوي دَ حننیاه وه او هغه ارمیاه نبي ونیوه چه ته دَ
کسدیانو په لوري په تیښته ځې ١٤ نو ارمیاه وُوِ چه دروغ دِي زه دَ ١٤
کسدیانو په لوري په تیښته نه ځم لیکن هغه ئې وانه وریدل نو اریاه
ارمیاه ونیو سردارانو ته ئې راووست ١٥ او سرداران ارمیاه ته په ١٥
قهر شول او وئې واهه او دَ یونتن کاتب په کور کښې ئې بندِي کړ ځکه
چه دوي هغه کور قیدخانه مقرّر کړي وه
١٦ او چه ارمیاه په زندان کښې او دَ هغه په ته‌خانو کښې داخل ١٦
شه او ارمیاه تر ډېرو ورځو هلته کښې پاتې شه ١٧ نو صدقیاه بادشاه ١٧
ور ولیږه هغه ئې راوبوست او بادشاه پخپل کور کښې دَدې خبرې
پته پوښتنه ورنه وکړه چه دَ خداوند له طرف څه کلام شته؟ او
ارمیاه ووئیل چه شته ځکه چه ده ووئیل چه ته به دَ بابل دَ بادشاه
په لاس حواله کړې شې ١٨ او ارمیاه صدقیاه بادشاه ته ووئیل چه ما ١٨
ستا او ستا دَ نوکرانو او دَدې قوم څه ګناه کړې دَه چه زه مو په
بندیخانې کښې اچولې یم ١٩ اوس ستاسې نبیان چرته دِي چه دَدې خبرې ١٩
نبوّت ئې درته کاوه وئیل به ئې چه دَ بابل بادشاه به په تاسې او په دَې
زمکې نه راوخیژي ٢٠ اې ځما خاوندَ بادشاه زه تاته زارِي کوم اوس ٢٠
مِ واوره ځما درخواست دِ ستا په حضور قبول ښي چه ما دَ یونتن کاتب
وکور ته مه ګرزوئِ هسې نه چه زه هلته کښې مړ شم ٢١ نو صدقیاه ٢١

بادشاه حکم وکړ چه ارمیاه دِ دَ څوکي دَ برک په غولي کښ کښېنوي
او هره ورځ دِ دَ ډوډيِ یوه تکله دَ نانبایانو له محلي نه اخلي ده ته
دِ ورکیږيِ تر هغه پوري چه دَ ټول ښهر ډوډيِ تمامي شيِ په دي
شان سره ارمیاه دَ بندیخانې په غولي کښ اوسیده +

اته دېرشم باب

۱ آ هغه وقت سفطیاه زوي دَ متان او جدلیاه زوي دَ فشور او یوکل
زوي دَ شلمیاه او فشور زوي دَ ملکیاه هغه خبري چه ارمیاه دَ ټولو
۲ خلقو دَ وړاندِ کړي وي واوریدي چه ده ویل ۲ خداوند داسي واپي هغه
چه په دي ښهر کښ پاتي شيِ نو په توري او په قحط او په وبا به
مړه شيِ او هغه چه کسدیانو ته ووزيِ نو ژوندي پاتي به شي
او دَ هغه ځان به دَ هغه دَپارَ غنیمت وِي او هغه به ژوندي اوسي
۳ ۳ خداوند داسي واپي چه دا ښهر چه دَ بابل دَ بادشاه دَ لښکر په
۴ قبضي کښ په یقین سره ورکړي شيِ او وا به ئي خلي ۴ دي دَپارَ سردارانو
بادشاه ته وویل چه مونږ تا ته زاري کوو چه دا سړي دِ مړ کړي شيِ
ځکه چه دغه دَ جنګي خلقو لاسونه چه په دي ښهر کښ پاتي دِي او
دَ ټولو خلقو لاسونه په داسي خبري کولو سست کوِي ولي چه دا سړي
۵ دَ دي قوم خیرخواه نه دَي بلکه بدخواه ئي دَي ۵ نو صدقیاه بادشاه ووِ
کوريِ هغه ستاسي په اختیار کښ دَي ځکه چه بادشاه داسي نه دَي
۶ چه ستاسي مخالفت وکړي ۶ نو هغوي ارمیاه ونیو دَ ملکیاه شاهزاده
په کوهي کښ چه دَ قیدخانې په غولي کښ وه وغورزاوه او هغوي
ارمیاه په رسيِ ورکوز کړ او په کوهي کښ اوبو نه وي چکړ وه او ارمیاه
۷ په چکړ کښ ونښت ۷ او چه عبدملک کوشي چه دَ بادشاه دَ کور له
خواجه سرایانو نه یو وه وا ئي وریدل چه ارمیاه ئي په کوهي کښ اچولي
۸ دَي او بادشاه دَ بنیمین په دروازي کښ ناست وه ۸ نو عبدملک دَ
بادشاه له کور نه ووت او بادشاه ته ئي دا خبره وکړه او وئي ویل

چه اي څما خاوندَ بادشاهَ دي خلقو هرڅه چه له ارمیاه نبي سره ۹
به يُ وکړل بديُ کړل چه په کوهي اچولي دِيَ او هلته کښې به له لوږې مړشي
ځکه چه په ښهر کښ نوريُ ډوډيُ نشته ۱۰ نو بادشاه عبدملک کوشي ته ۱۰
دَدي خبري حکم وکړ چه ته له دي ځاي نه ديرش سړي در سره
واخله او ارمیاه نبي وړاندِ له مړيدلو له کوهي راوباسه ۱۱ او عبدملک ۱۱
له ځان سره هغه سړي واخستل دَ بادشاه په کور کښ ترخزاني دَلاندِ
ورغي او زړي خيري او وراسته ټکړي له هغه ځاي نه واخستل په
رسيو يُ کوهي کښ ارمیاه ته ور وځړولي ۱۲ او عبدملک کوشي ارمیاه ۱۲
ته ووِ چه دغه زړي خيري او وراسته ټکړي تر رسيُ دَلاندِ ترخپل
تخرګ دَ لاندِ کيږده او ارمیاه هم هسي وکړل ۱۳ او هغوي په رسيو ۱۳
سره ارمیاه را وښکاوه او له کوهي يُ راويوست او ارمیاه دَ ځوکيِ
دَ برج په غولي کښ پاتي شه
۱۴ نو صدقیاه بادشاه وارمیاه نبي ته واستول او دي يُ دَ ۱۴
خداوند دَ کور په دريم ځاي دَ ننوتلو کښ خپل ځان ځخه وباله او
بادشاه ارمیاه ته وُوِ چه زه له تانه دَ يوي خبري پوښتنه کوم ته
رانه هيڅ مه پټوه ۱۵ او ارمیاه صدقیاه ته وُوِچه که زه تاته ځرګند ۱۵
ووايم نو ته به مِ په يقين سره مړ کړي او که زه صلاح درکړم نو
ته به مِ وانه وري ۱۶ نو صدقیاه بادشاه دَ ارمیاه دَ وړاندِ پټ قسم ۱۶
وخوړ و يُ ويل په هغه ژوندي خداوندِ قسم دَيَ چه دا ځان څما يُ
جوړ کړ چه نه به دِ قتل کړم او نه به دِ دَ هغو
سړيو لاسونو ته چه ستا دَ ځان طلبګار دي وسپارم ۱۷ نو ارمیاه ۱۷
صدقیاه ته وُوِچه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي فرمايِي
په يقين سره چه که ته دَ بابل دَ بادشاه و سردارانو ته ووزي نو به
ستا ځان ژوندي شِي او دا ښهر به په اور و نه سوزاوه شِي او ته
او ستا ټبر به ژوندي اوسِي ۱۸ او که نه دَ بابل دَ بادشاه سردارانو ۱۸

ته نه ووزي نو دا ښهر به دَ کسدیانو په لاس کښ ورکړي شي او هغوي
۱۹ به ئي په اور وسوزوي او ته به ئي له لاسونو خلاص نه شي ۱۹ او
صدقیاه بادشاه ارمیاه ته ووِ چه زه له هغو یهودیانو ډارېږم چه
له کسدیانو سره یوځاي شوي دِي هسي نه چه دَ هغو ولاسو ته
۲۰ مِ وسپارِي او په ما باندِ طعنه ووهي ۲۰ او ارمیاه ووېل هغوي به دِ
حواله نه کړي زه تا ته زارِي کوم چه ته دَ خداوند آواز چه زه ئي درته
۲۱ وایم واوره نو ستا به ښه وِي او ځان به دِ ژوندي شي ۲۱ او که ته
دَ ورو تلو نه انکار وکړي نو دا کلام دَي چه خداوند په ما باندِ ظاهر
۲۲ کړ ۲۲ چه ګوره ټولي ارتیني چه دَ یهوداه بادشاه په محل کښ پاتي
دِي دَ بابل دَ بادشاه و سردارانو ته به ورسَولي شي او دوي به واېي

ستا یارانو ته لمسولي يي
او په تا غالب شوي دِي
ستا پښي په چکر کښ نښتلي دِي
او په ورستو ګرزیدلي دِي

۲۳ ۲۳ او هغوي ستا ټولي ښځي او ستا هلکان به دَ کسدیانو ته وباسِي
او ته به هم دَ هغو له لاس نه خلاص نه شي بلکه دَ بابل دَ بادشاه
په لاس کښ به ګرفتار يي او ته به دَدي ښهر په اور سیځونکي شي
۲۴ ۲۴ نو صدقیاه ارمیاه ته ووِ چه په دي خبرو دِ هیڅوک خبر
۲۵ نه شي او ته به مړ نه شي ۲۵ او که سرداران واورِي چه ما له تا
سره خبري کولي او هغوي تا ته درشِي ووايِي چه هغه څه چه بادشاه
تا ته ووېل په موږ ئي ظاهر کړه مه ئي رانه پټوه او هغه څه هم
۲۶ چه بادشاه تا ته ووېل او موږ به دِ نه وژنو ۲۶ نو ته ورته وایه
چه ما دَ بادشاه دَ وړاندِ خپل عرض وکړ چه دَ یوناتان په کور کښ
۲۷ مِ بیا نه استوِي څکه چه زه به هلته کښ مړ شم ۲۷ نو ټول سرداران
ارمیاه ته ورغلل او پوښتنه ئي ور نه وکړه او ده دَ دغو ټولو خبرو

پهٔ سوافق چه بادشاه ورته فرمایلي وي ورته ووِ نوُ هغوي ورنه چپ
شول ځکه چه هغه خبره واوریدلي نه وه ۲۸ او تر هغي ورځي پوري ۲۸
چه اورشلیم آخست کیده ارمیاه دَ ځوکي دَ برج په غولي کښ اوسیدهٔ
اوچه اورشلیم واخست شه هم هلته کښ وه ٭

# نه دیرشم باب

۱ دَ یهوداه دَ بادشاه صدقیاه دَ نهم کال په لسمي میاشتي کښ داسي ۱
وشوه چه دَ بابل بادشاه نبوکدرځر له ټول لښکر سره په اورشلیم باندِ
ور وخوت او قلابند ئي کړ ۲ دَ صدقیاه دَ یولسم کال په څلورمي میاشتي ۲
کښ اودَ دغي میاشتي په نهم تاریخ ښهر شکست وموند ۳ او دَ بابل ۳
دَ بادشاه ټول سرداران یعني نیرګل سراضر سمجرنبو سرسیکم رب سارس
نیرګل سراضر رب مګ اودَ بابل دَ بادشاه نور سرداران داخل شول
اودَ منځ په دروازي کښیناستل
۴ او داسي وشول چه دَ یهوداه بادشاه صدقیاه او ټولو جنګي ۴
میړونو چه هغوي لیدل نو وتښتیدل او شپي ته دَ بادشاهِي
باغ په لاري له هغي دروازي نه چه دَ دوو دیوالونو په منځ کښ دَي
له ښهرَ ووتل اودَ عرابه لاري ئي ووتل ۵ لیکن دَ کِسدیانو فوځ ۵
ورپسي شه اودَ یریحو په عرابو کښ ئي صدقیاه ته ورسیدل او
نیولي ئي په ربلاه کښ دَ حمات دَ زمکي په منځ کښ دَ بابل دَ بادشاهٔ
نبوکدرځر په حضور ئي وروست او هغه په ده فتویٰ وکړه ۶ اودَ ۶
بابل بادشاه دَ صدقیاه زامن په ربلاه کښ دَده دَ سترګو دَ وړاندِ
ووژلل او په دي شان دَ بابل بادشاه دَ یهوداه ټول امیران ووژلل
۷ اودَ صدقیاه سترګي ئي ویستلي اودَ زیړو په زنځیرونو ئي وتاړه چه ۷
بابل ته ئي بوزِي ۸ او کسدیانو بادشاهِي محل اودَ خلقو کورونه په ۸
اور وسیځل او دَ اورشلیم دیوالونه ئي ونړول
۹ پس له هغه دَ لښکر سردار نبوزرادان باقِي خلقو لره چه په ۹

ښهر کښ پاتي وُو او هغوي چه دَ دوي په لورِي شوي دَه نه راغلي او
١٠ ټول باقِي خلق دَ قوم ئي په بند بابَل ته بوتلل ١٠ مگر دَ قوم له مسکينانو
نه چا څخه چه هيڅ نه وُو دَ لښکر سردار نبوزرادن دَ يهوداه په زمکه
کښ پريښول او تاکستانونه اوپټي ئي په هغي ورځي ور و بخښــــل
١١ ١١ او دَ بابَل بادشاه نبوکدرځر دَ ارمياه په باب دَ لښکر سردار
١٢ نبوزرادن په تاکيد سره وويل ١٢ چه وائي خله ښه نظر پرِ کوه او هيڅ
١٣ بد ور سره مه کوه بلکه ته هغه ورسره کوه چه دَي درته وايي ١٣ نو
دَ لښکر سردار نبوزرادن نبوشزبان ربسارس او نيرگل سراځر ربماگ
١٤ او دَ بابَل ټولو سردارانو واستول ١٤ ارمياه ئي دَ څوکي دَ برج له غولي نه
را واخست او دَ جدلياه زوي دَ اخيقام زوي دَ شافن ته ئي وسپاره
چه دي ئي خپل کور ته بوزِي نو دَي دَ خلقو په منځ کښ اوسيده
١٥ ١٥ او هغه وقت چه ارمياه دَ څوکي دَ برج کښ بندوه دا کلام
دَ خداوند ور و رسيده او وئي ويل چه لاړ شه عبدملک کوشي ته
ووايه چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي فرمايي گوره زه به
خپلي خبري چه دَ دي ښهر دَ خرابِي په باب او نه چه دَ ده دَ ښيگړي
په باب دِي را به ئي ولېږِم او هغه به هغه ورځ ستا دَ وړاندِ پوره شي
١٧ ١٧ مگر هغه ورځ به تا ته خلاصي درکړم خداوند وايي او ته به دَ هغو سړيو
١٨ په لاس کښ چه ته ورِنه ويرېږي ونه سپاره شي ١٨ ځکه چه زه به دِ ضرور
خلاص کړم او ته به په توره پرِنه وزي بلکه ستا ځان به ستا دَ پارَ غنيمت
شي دي دَ پارَ چه تا په ما باندِ توکّل کړي دَي خداوند وايي *

## څلويښتم باب

١ ١ هغه کلام چه دَ خداوند له طرف ارمياه ته ورسيده پس له هغه
چه دَ لښکر سردار نبوزرادن دي په ځولانو کښ بند بيا موندلي وه دَ
هغو ټولو بنديانو په منځ کښ چه دَ اورشليم او دَ يهوداه وُو چه بنديوان
٢ ئي بابَل ته بوت او هغه ئي له رامه نه خلاص کړ ٢ او دَ لښکر سردار

ارمیاه واخست ور ته ئې وُوِ چه خداوند ستا الله دَ دې بلا چه په دې
۳ مکان راغله خبر درکړي وه ۳ نو خداوند هغه نازله کړې دَه او دَ خپلو
ویلو په موافق ئې کړي دِي په دې سبب چه تاسو دَ خداوند خطا وکړه
۴ او دَ ده آواز مو اوریدلي نه دَي څکه دا در باندِ راغله ۴ او گوره نن
ورځ دِ زه له دې ځولانو نه چه ستا په لاسونو کښ دِي خلاصوم نو که
له ما سره بابل ته تلل ستا په نظر کښ ښه ښکاریږي نو را سره
څه زه به نظر درباندِ کوم او که له ما سره بابل ته تلل ستا په نظر
کښ بد ښکاریږي نو پاتې شه گوره ټوله زمکه ستا دَ وړاندِ ده کوم
لورې چه ستا په نظر کښ ښه او راست ښِي هغه لورِي ته څه -
۵ ۵ نو دَي لا نه گرزیدلي نه وه چه هغه بیا وُوِ چه ته جدلیاه زوي دَ
اخیقام زوي دَ شافن ته چه دَ بابل بادشاه دَ یهوداه دَ ښهرونو حاکم
کړي دَي ورشه او دَ قوم په منځ کښ دَ هغه څخه پاتې شه که نه
نو هرچرته چه دِ په سترګو کښ راست درښي هلته ورځه او دَ لښکرو
۶ سردار ده ته خوراک ورکړ او انعام ئې هم ورکړ او رخصت ئې کړه ۶ نو
ارمیاه دَ جدلیاه زوي دَ اخیقام څخه په مصفاه کښ ورغي او له
هغه سره دَ هغو خلقو په منځ کښ چه په زمکي کښ پاتې وُو اوسیده
۷ ۷ هرکله چه دَ لښکرو ټولو سردارانو او دَ هغو سړیو چه په میدان
کښ پاتې وُو واوریدل چه دَ بابل بادشاه جدلیاه زوي دَ اخیقام دَ
زمکي حاکم کړي دَي او چه هغه میړونه او ښځي او هلکان او دَ بادشاهت
مسکینان چه په بند سره بابل ته بیولي شوي نه وُو ده ته ئې سپارلي
۸ وُو ۸ نو اسماعیل زوي دَ نتنیاه او یوحنان او یونتان دَ قریحه زامن
او سرایاه زوي دَ تنحومت او بني عوفي نطوفاتي او یزنیاه زوي دَ معکاتي
۹ له خپلو سړیو سره جدلیاه څخه په مصفاه کښ راغلل ۹ او جدلیاه
زوي دَ اخیقام زوي دَ شافن له دوي او دَ دوي دَ سړیو سره قسم
وخوړ وئې ویل چه تاسې دَ کسدیانو له خدمتګارۍ کولو نه مه ویریږئ

په زمکي کښي اوسئ او د بابل د بادشاه خدمت کوئ او ستاسو به ښه
۱۰ وي ۱۰ زه چه يم ګورئ په مصفاه کښي اوسم چه د هغو کسديانو چه
راشي د هغو په مخ کښي ودريږم مګر تاسي شراب او د دوبي ميوي او
تيل جمع کړئ په خپلو لوښيو کښي کيږدئ او په خپلو ښهرونو کښي چه
۱۱ قبضه کړي مو دي اوسئ ۱۱ او چه ټولو يهوديانو چه په موآب او بني عمون
او په آدوم او د هغو په ټولو اطرافو کښي وو واوريدل چه د بابل بادشاه
څو باقيه د يهوداه خلاص کړي دي او په هغو باندي جدلياه زوي د
۱۲ اخيقام زوي د شافن ئي حاکم کړي دي ۱۲ نو ټول يهوديان له هرځاي
نه چه ورشړلي شوي وو راوګرزيدل او د يهوداه په زمکه په مصفاه
کښي جدلياه څخه راغلل او شراب او د دوبي ميوي ډيري جمع کړي
۱۳ ۱۳ او يوحنان زوي د قريحه او د لښکرو ټول سرداران چه په
ميدان کښي وو په مصفاه کښي جدلياه څخه راغلل او ده ته ئي وويل
۱۴ ۱۴ چه نه له دي نه خبر يي څه؟ چه د بني عمون بادشاه بعليس اسماعيل
زوي د نتنياه استولي دي چه ستا ځان ووژني مګر جدلياه زوي د
۱۵ اخيقام د هغو په خبري باور ونه کړ ۱۵ او يوحنان زوي د قريحه په
مصفاه کښي جدلياه ته پټ ووې چه زه عرض لرم ما پريږده چه زه
اسماعيل زوي د نتنياه ووهم او هيڅوک به خبر نه شي هغه دِ څله تا قتل
کړي او ټول يهوديان چه تا څخه جمع شوي دي تار په تار به شي
۱۶ او له يهوداه نه هغه خلق چه باقي دي هلاک به شي ۱۶ ليکن
جدلياه زوي د اخيقام يوحنان زوي د قريحه ته ووې ته داسي
کار مه کړه چه ته د اسماعيل په باب دروغ وايي +

## يو څلويښتم باب

۱ ۱ او اومه مياشت داسي وشول چه اسماعيل زوي د نتنياه زوي د
اليسمع چه له بادشاهي نسل وه او د بادشاه له اميرانو لس سړي
له هغه سره د جدلياه زوي د اخيقام په مصفاه کښي راغلل او دوي

هلته په مصفاه کښ یو ځاي ډوډۍ سره وخوړه ۲ نو اسماعیل ۲
زوي دَ نتنیاه له هغو لسو سړیو سره چه ورسره وُو پاڅید اوجدلیاه
زوي دَ اخیقام زوي دَ شافن چه دَ بابل بادشاه دَ ملک حاکم کړي
وه په توري وواهه او مړ ئي کړ ۳ او اسماعیل هغه ټول یهودیان ۳
چه له هغه سره یعني له جدلیاه سره په مصفاه کښ وُو اوکسدیان
چه هلته وموندلي شول او جنګي میړونه قتل کړل ۴ اوچه ده جدلیاه ۴
مړ کړ او څوک پړي خبر نه شول دَ هغه په دویمه ورځ داسي وشول
۵ چه له سیکم او له سیلا او له سمرونَ یو څو سړي چه ټول سره ۵
اتیا سړي وُو ږیري خریلي اوجامي څیرلي اوخپل ځانونه ژوبل کړي او
هدیي او لُبان په لاسو کښ نیولي هلته کښ راغلل تاچه دَ خداوند
په کور کښ ئي راوړي ۶ او اسماعیل زوي دَ نتنیاه له مصفاه نه دَ هغو ۶
استقبال ته ووت او په ژړا ژړا ته او داسي وشول چه له هغو سره
ملیا شه نو ورته وئي ویل چه جدلیاه زوي دَ اخیقام څخه ورشئ-
۷ او داسي وشول چه دوي دَ ښهر نیمانیم ته ورسیدل نو اسماعیل ۷
زوي دَ نتنیاه او دَده ملګریو هغه قتل کړل او په کوهي کښ ئي و
غورزول ۸ لیکن په هغو کښ لس سړي موجود وُو چه اسماعیل ته ئي ۸
وِو چه مونږ مه وژنه ځکه چه په میدانونو کښ څمونږ غنم اوجوار او
نیل او شهد انبارونه دِي نو دَي ور نه ستون شه او هغوي ئي دَهغو
دَ وروڼو په مینځ کښ قتل نه کړل ۹ او په کوم کوهي کښ چه اسماعیل ۹
دَ هغو خلقو مړي اچولي وُو چه ده له جدلیاه سره قتل کړل هم هغه
وه چه آسا بادشاه دَ اسرائیل دَ بادشاه بعشا له ویري جوړ کړي
وه ۱۰ او اسماعیل زوي دَ نتنیاه هغه دَ وژلیو له مړیو ډک کړ ۱۰ او ۱۰
اسماعیل ټول پاتي شوي خلق چه په مصفاه کښ اوسیدل یعني دَ
بادشاه لوڼي او هغه ټول خلق چه په مصفاه کښ پاتي وُو چه هغوي
دَ لښکرَ سردار نبوزرادن جدلیاه زوي دَ اخیقام ته سپارلي وُو په

بند يُ بوتلل هغوي اسماعيل زوي دَ نتنياه په بند بوتلل او روانه
شول چه پوري شِي دَ بنيعمون په ځنګښ لاړ شِي
۱۱ ^۱۱ ليکن هرکله چه يوحنّان زوي دَ قريحه او دَ لښکرو ټولو سردارانو
چه ورسره وُو دَ اسماعيل زوي دَ نتنياه ټول شرارتونه واوريدل
۱۲ چه ده کړي وُو ^۱۲ نو دوي ټول خلق واخستل دَ اسماعيل زوي دَ نتنياه
جنګيدلو ته ورغلل او دَ جبعون دَ ګنړو اوبو په غاړي باندِ يُ و مُند
۱۳ ^۱۳ او داسي وشول چه هغو ټولو خلقو چه دَ اسماعيل سره وُو يوحنّان
زوي دَ قريحه او له ده سره دَ لښکرو ټول سرداران يُ وليدل نو
۱۴ خوشحال شول ^۱۴ نو ټول خلق چه اسماعيل له مصفاه نه بيولي وُو
۱۵ پستنه وګرزيدل او يوحنّان زوي دَ قريحه څخه وراغلل ^۱۵ ليکن اسماعيل
زوي دَ نتنياه له اتو سړيو سره دَ يوحنّان له مخه وتښتيد او دَ
۱۶ بنيعمون په لوري لاړل ^۱۶ نو يوحنّان زوي دَ قريحه او هغو سردارانو دَ
لښکر چه له ده سره وُو دَ قوم ټول باقيه واخستل هغوي چه ده دَ
جدلياه زوي دَ اخيقام دَ قتل کيدلو پس له مصفاه نه دَ اسماعيل
زوي دَ نتنياه له لاس خلاص کړي وُو يعني بهادر جنګي ميړونه او
۱۷ ښځي او هلکان او خواجګان چه له جبعون نه يُ راوګرزولي وُو ^۱۷ او هغوي
روانه شول او دَ کمهام په سراي کښ چه بيتِ لحم ته نژدي دي راغلل
۱۸ تا چه مصر ته لاړ شِي او ور ننه وزِي ^۱۸ دَ کسديانو په سبب څکه چه دوي
له هغوي نه په دي سبب وويريدل چه اسماعيل دَ نتنياه زوي دَ
جدلياه زوي اخيقام چه دَ بابل بادشاه دَ هغي زمکي حاکم کړي
وه قتل کړي وُه ✚

## دوڅلويښتم باب

۱ ^۱ نو ټول سرداران دَ لښکر او يوحنّان زوي دَ قريحه او يزنياه زوي
۲ دَ هوسعياه او ټول خلق له وړوکِي تر لوي پوري نژدي راغلل او
ارمياه نبي ته يُ ووِ چه خُموږ زاري دِ تا ته درورسِي او له خيل

خداوند الله نه ځمونږ دَپارَ دُعا وغواړه هو دَدغو ټولو باقیو دَپارَ چه
مونږ له ډیرو نه لږ لکه چه ستا سترګي مو وینی پاتي شوي یُو ۳ تا ۳
چه خداوند ستا الله هغه لار چه مونږ پرِ ځُو او هغه کار چه مونږ
ئې کُوو را وښیي ۴ نو ارمیاه نبي هغوي ته وُوِ چه ما ستاسي آوریدلي ۴
دِي ګوره زه به له خداوند ستاسي له الله نه ستاسي دَ خبرو په
موافق دُعا وغواړم او داسي به وشِي چه هغه ځواب چه خداوند ئي
تاسو ته درکړِي زه به ئي دروابروم هیڅ کلام به درنه منع نه کړم-
دَ ۵ او هغوي ارمیاه ته وُوِ چه خداوند دِ دَ رښتني او وفادار ګواه ځمونږ ۵
په منځ کښ شِي که مونږ دَ هغو ټولو خبرو په موافق و نه کړُو چه دَ
هغه دَپارَ به خداوند ستا الله تا لره مونږ ته را واستوِي ۶ که ښه ۶
وِي که بد وِي مونږ به دَ خداوند الله خپل آواز چه هغه ته مونږ تا
استُوو ومنُو دي دَپارَ چه مونږ دَخداوند خپل الله خبره و منُو نو
ځمونږ دِ ښه شِي

۷ او پس له لسو ورځو داسي وشول چه دَ خداوند کلام ارمیاه ۷
ته ورسیده ۸ نو ده یوحنّان زوی دَ قریحه او ټول سرداران دَ لښکر ۸
چه له ده سره وُو او ټول خلق له وړوکي تر لویه ئي وبلل او ورته
ئې وُوِ ۹ چه خداوند دَ اسرائیل الله چه هغه ته مو زه واستولم ۹
چه زه دَ هغه په حضور ستاسي عرضي تیره کړم داسي فرمائي ۱۰ که ۱۰
تاسي په دي زمکي کښ په یقین سره اوسئِ نو زه به موجوړ کړم او
نه به مو نړوم او زه به مو ولګوم او نه به مو کاږم ځکه چه زه له
هغي بدِي نه پښیماني کوم چه ما درسره کړي دَه ۱۱ دَ بابل له بادشاه ۱۱
نه چه تاسي ورنه ویریږِئ مه ډاریږِئ خداوند وائي ځکه چه زه له
تاسي سره یم چه تاسي خلاص کړم او دَ هغه له لاس مو آزاد کړم ۱۲ او ۱۲
زه به دَ هغه دَ وړاندِ په تاسي رحم وکړم چه هغه به رحم در باندي
وکړي او تاسي ته به ستاسي وطن ته. را وګرزوِي ۱۳ او که تاسي وائِي ۱۳

چه سونږ به بیا په دې زمکې کښې و نه اوسو هسې چه تاسو دَ خداوند
۱۴ خپل الله آواز و نه منئ ۱۴ او وایئ چه نه: سونږ به دَ مصر زمکې ته
ورشُو چه هلته کښې به جنګ و نه وینو نه به دَ تورئ آواز واورو
۱۵ نه به دَ ډوډئ وږې شو او هلته کښې به اوسو ۱۵ نو اې دَ یهوداه
باقي خلقو اوس دَ خداوند کلام واورئ خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله
داسې وایې چه که تاسې په رښتیا سره په مصر کښې د ننه تلو دَپارَ
۱۶ خپل مخ کوئ او هلته کښې دَ مقام کیدلو دَپارَ ورځئ ۱۶ نو داسې به
وشي چه هلته توره چه تاسې ورنه ډارېږئ هلته کښې به دَ مصر
په زمکه کښې به ئې دربانډې درولې او هغه قحط چه تاسې ور نه به
ترس کښې یئ هلته به تر مصر پورې درپسې وي او هلته کښې به
۱۷ سره شئ ۱۷ بلکه داسې به وشي چه هغه ټول کسان چه خپل مخونه
دَ مصر په لورې کوي چه هلته کښې ورشي مقام وکړي په تورې او
په قحط او په وبا به سره شي له هغوي به هیڅوک باقي نه شي نه به
۱۸ له هغې بلا نه چه زه ئې پرې نازله کړم و تښتیدلې شي ۱۸ ځکه چه
خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسې وایې لکه چه ځما قهر او
غضب به دَ اورشلیم په اوسیدونکیو نوې شوې دې هم هسې به ځما
قهر په تاسې بانډې هم نوې شي هغه وقت چه تاسې به په مصر
کښې داخل شئ او تاسې به یو بېښې او یو حیرانې او یو لعنت او یو
۱۹ ملامت شئ او داخاې به بیا و نه وینئ ۱۹ اې دَ یهوداه باقي شویو
خداوند ستاسې دَپارَ فرمایلې دې چه مصر ته مه ورځئ په یقین
۲۰ و پوهېږئ چه ما نن ورځ په تاسې ګواهي للې دَه ۲۰ په حقیقت سره
تاسو خپل ځانونو غولولې دي ځکه چه تاسې په دې ویلو زه دَ خداوند
الله په حضور واستولم چه ته له خداوند ځمونږ له الله نه ځمونږ
دَپارَ دُعا وغواړه او هر څه چه خداوند ځمونږ الله ووایې په مونږ ئې
۲۱ ظاهر کړه او مونږ به ئې وکړو ۲۱ او ما نن ورځ په تاسې دا ظاهر کړې

دِي نو هم تاسي دَ خداوند خپل الله آواز لره یا کومي خبري لره چه
دَ هغي دَپارَ يُ زه تاسو ته در استولي يم منلي نه ده ۲۲ اوس تاسي ۲۲
يقين وکړئِ چه تاسي په هغه ځاي کښ چه تاسي هلته ورتلل
او مقام کول غواړئِ په توري او په قحط او په وبا به و مرئِ ❊

## دري څلويښتم باب

آ او داسي وشول چه ارمیاه دَ خداوند دَ دوي دَ الله ټولي خبري چه ۱
دَ هغو دَپارَ خداوند دَ هغو الله دي ور استولي وه يعني دغه ټولي
خبري ټولو خلقو لره تمامي کړي ۲ نو عزرياه زوي دَ هوسعياه او يوحنان ۲
زوي دَ قريحه او ټولو کبرجنو کسانو ارمياه ته داسي وِوَيل چه ته
دروغ وايي خداوند څموږ الله ته دَ دي ويلو دَپارَ استولي نه يي
چه مصر ته دَ مقام کولو دَپارَ مه ورځئ ۳ ليکن باروک زوي دَ ۳
نيرياه په موږ ته ولمسولي تا چه موږ دَ کسديانو په لاس کښ گرفتار
کړي او هغوي مو قتل کړي او په بند مو بابل ته بوزي
۴ نو يوحنان زوي دَ قريحه او دَ لښکرو ټولو سردارانو او ۴
ټولو خلقو دَ خداوند خبري چه دوي دَ يهوداه په زمکه کښ تم شي
نه و منلي ۵ ليکن يوحنان زوي دَ قريحه او دَ لښکرو ټولو سردارانو ۵
دَ يهوداه ټولو باقي خلقو لره چه له ټولو قومونو نه چه هلته کښ
دوي تار په تار شوي وُو دَ يهوداه زمکي ته مقام کولو دَپارَ بيرته
راغلي وُو له ځان سره کړل ۶ يعني ميرونه او ښځي او هلکان او ۶
دَ بادشاه لوڼي او هرچا لره چه دَ لښکر سردار نبوزردان دَ
جدلياه زوي دَ اخيقام زوي دَ شافن سره پرېښي وُو او ارمياه
نبي او باروک زوي دَ نيرياه له ځان سره کړل ۷ نو هغوي دَ مصر ۷
زمکي ته راغلل ځکه چه دَ خداوند خبري يُ منلي نه وي تحفنحيس
ته ورسيدل ۸ نو دَ خداوند کلام په تحفنحيس کښ په ارمياه نازل ۸
شه او و يُ ويل ۹ چه لوي کاڼي په خپل لاس کښ واخله او هغه دَ خښتو ۹

به مصالحي کښي چه په تخفنحيس کښي دَ فرعون دَ محل په دهليز دي
۱۰ دَ بني يهوداه دَ سترګو دَ وړاندِ ئي پټ کړه ۱۰ اوورته ووايه چه
خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي وائي چه ګوره زه به خپل
خدمتګار بادشاه دَ بابل نبوکدرضر ته واستوم او را وا به ئي خلم
او به هغو کاڼيو چه ما پټ کړي دي دَ هغه تخت پرِ کيږدم او دي
۱۱ به خپله شاميانه په هغه باندِ وغوړوي ۱۱ او دي به راشي او دَ
مصر زمکه به ووهي او هغه چه دَ مرګ دَپارَ دي مرګ ته اوچه دَ بنديواني
دَپارَ دِي بنديواني ته اوچه دَ توري دَپارَ دِي توري ته به وسپارل شي
۱۲ ۱۲ او زه به دَ مصر دَ معبودانو په کورونو اور بل کړم او هغوي به وسوځوي
او په بند به ئي بوزي و لکه چه شپون خپلي جامي نغاړي هم هسي به
هغه خپل ځان دَ مصر په زمکه کښي ونغاړي او له هغه ځاي نه به
سلامت لاړ شي او هغه به دَ بيت شمس ستني چه دَ مصر په زمکي کښي
دِي ماتي کړي او دَ مصريانو دَ معبودانو کورونه به په اور وسيځي*

## څلور څلويښتم باب

۱ ۱ هغه کلام چه دَ ټولو يهوديانو په باب چه دَ مصر په زمکه کښي
او په مجدال کښي او په تخفنحيس کښي او په نوف کښي او دَ
فتروس په زمکه کښي اوسيدل ارمياه ته ورسيده او وئي ويل
چه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي وائي چه تاسو دا
ټولي بلاوي چه ما په اورشليم باندِ او دَ يهوداه په ټولو ښهرونو
نازلي کړي دي وليدي اوګوره هغوي نن ورځ ويرانه دِي او په
۳ هغو کښي يو اوسيدونکي هم نشته ۳ دَ هغه شرارت په سبب چه
هغوي ځما دَ قهرولو دَپارَ کړي دي چه دوي دَ بيګانه معبودانو دَ
وړاندِ لبان سيځل اودَ هغو عبادت ئي کاوه چه نه دوي پيژاندل
۴ نه هغوي نه تاسو نه ستاسي پلرونو نيکونو ۴ او ما خپل ټول
خدمتګار نبيان درواستول صباح وقتي پاڅيدلي درواستول

او و مې ويل چه تاسي هغه نفرتي کار چه زه نفرت ورنه کوم مه
کوئ ٥ مګر هغوي نه واوريدل نه ئې غوږونه کيښول چه له خپلي ٥
بدي نه بيرته راشي او دَ بيګانه معبودانو دَ وړاندِ لُبان نه سوځي
٦ دي دَپارَ ځما قهر او غضب توي شه او دَ يهوداه په ښهرونو ٦
او دَ اورشليم په بازارونو بل شه او دغه خراب او ويران شول لکه
چه نن ورځ دي ٧ او اوس خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي ٧
وايي چه تاسي ولي په خپلو ځانونو داسي لويه بدي کوئ چه په يهوداه
کښ سړي او ښځي او هلکان او ئې خوړونکي بچي پريکړ شي چه ستاسو
دَپارَ هيڅ پاتي نه شي ٨ چه تاسي دَ مصر په زمکه کښ چه هلته ٨
دَ مقام کولو دَپارَ ورغلئ دَ خپلو لاسونو له کارونو او دَ بيګانه
معبودانو دَ وړاندِ په لبانو سيځلو م په غصّه کوئ چه تاسي پريکړي
شئ او دَ ټولو قومونو په مينځ کښ دَ لعنت او دَ ملامت سبب شئ
٩ تاسي دَ خپلو پلرونو او نيکونو بدکارئ او دَ يهوداه دَ بادشاهانو ٩
بدکارئ او دَ هغو دَ ارتينو بدکارئ او هم خپلي بدکارئ او دَ خپلو
ارتينو بدکارئ چه هغوي دَ يهوداه په زمکه کښ او دَ اورشليم په
کوڅو کښ کړي دي هيري کړي دي څه؟ ١٠ هغوي تر نن ورځ پوري ١٠
هم دل شکسته نه شول او نه ووېريدل او ځما په تورێت او په
حکمونو چه ما ستاسي او ستاسي دَ پلرونو او نيکونو دَ وړاندي
کيښول نه لاړل ١١ دي دَپارَ خداوند د لښکرو دَ اسرائيل الله داسي ١١
وايي چه ګوره زه به خپل مخ دَ بدي دَپارَ ستاسو په خلاف کړم
دي دَپارَ چه ټول يهوداه پريکړم ١٢ او زه به دَ يهوداه باقي خلق ١٢
چه دغو خپل مخونه دَ مصر په زمکه کښ دَ ورتلو دَپارَ کړي دي چه
هلته مقام وکړي ونيسم او دوي ټول به تمام شي او دوي به دَ مصر
په زمکي کښ به پريوزي دوي به په توري او په قحط تمام شي دوي
به له وړوکيو تر لويو پوري په توري او په قحط مړ شي او دوي به

۱۳ دَ پېښې او دَ حیرانۍ او دَ لعنت او دَ ملامت سبب شي ۱۳ او زه به
هغوي ته چه دَ مصر په زمکه کښ اوسي هغه شان سزا ورکړم لکه
۱۴ چه ما اورشلیم ته په توري او په قحط او په وبا سزا ورکړې ده ۱۴ هسې
چه دَ یهوداه له باقي خلقو نه چه دَ مصر وزمکي ته ورغي چه هلته
مقام وکړي هیڅ یو به نه وي چه وتښتي یا باقي شي چه دَ یهوداه په
زمکه کښ راشي چه دوي آرزومند دي چه بیرته ورشي او په هغې کښ و
اوسي ځکه چه هیڅوک به نه وګرځي بې له هغه چه په تېښته ووزي
۱۵ ۱۵ نو ټولو میړونو چه پوهیدل چه دَ دوي ارتینو د بیګانه معبودونو
دَ وړاندې لُبان سیځي او ټولو ښځو چه ورځنه ولاړې وې یو لوی ټولي
یعني ټولو خلقو چه دَ مصر په زمکه کښ په فتروس کښ اوسیدل
۱۶ ارمیاه ته دا ووِ ځواب ئې ورکړ ۱۶ چه دا خبره چه تا دَ خداوند په نوم
۱۷ سره مونږ ته کړې ده هیڅرې به ئې وا به دِ نه وروو ۱۷ بلکه مونږ خو به هره
هغه خبره وکړو چه ځمونږ له خولې نه وتلې ده مونږ خو به دَ آسمان
دَ ملکي دَپارَ لُبان وسیځو او دَ ښښکلو هدیې ورته تویه کوو لکه چه
مونږ پخپله او ځمونږ پلارونو او ځمونږ بادشاه او ځمونږ شاهزادګانو
دَ یهوداه په ښهرونو او دَ اورشلیم په کوڅو کښ کول چه هغه وخت
۱۸ مونږ په ډوډۍ ماړه او په خیر وُو او بدي مو نه لیدله ۱۸ مګر
له هغه وقت چه مونږ دَ آسمان دَ ملکي دَپارَ لُبان سوزول او دَ
هغه دَپارَ دَ ښښکلو هدیې تویول پریښول نو مونږ دَ هرڅیز محتاج
۱۹ یُو او په توري او په قحط فنا شوي یُو ۱۹ او هرکله چه دَ آسمان دَ
ملکي دَپارَ مو لُبان سوزول او دَ ښښکلو هدیې مو تویې کولې نو مونږ
خپلو میړونو بغیر دَ ده دَ عبادت دَپارَ کلچې جوړې کړلې او دَ ښښکلو
۲۰ هدیې مو تویه کولې څه ۲۰ نو ارمیاه ټولو خلقو ته میړو او ښځو او هغو ټولو خلقو ته چه
۲۱ ده ته ئې دا ځواب ورکړې و ویلې ۲۱ هغه لُبان چه تاسو او ستاسو پلرونو او
نیکونو او ستاسو بادشاهانو او ستاسو شاهزادګانو او له رعیت دَ یهوداه

په بنهرونو کښ او دَ اورشلیم په کوڅو کښ سېځلي دِي خداوند هيڅ
یاد نه کړل څه ؟ او په خاطر کښ يې نه راوړل څه ؟ ۲۲ نو خداوند ۲۲
له هغه نه وړاندِ ستاسو دَ بدوکارونو او ستاسو دَ نفرتي کارونو
چه تاسو کړي دِي زغم کولي نه شه ځکه ستاسو زمکه ويرانه شوه او
دَ حيرانۍ او دَ لعنت سبب چه په دغي کښ هيڅوک اوسيدونکي نشته
لکه چه نن ورځ ده ۲۳ او دي دپارَ چه تاسو لُبان سوزولي دِي او دَ ۲۳
خداوند خطا سو کړي دَه او دَ خداوند دَ آواز آوريدونکي شوي نه يئِ
نه دَده په توريت نه دَده په حکمونو او نه دَده په وعدو لاړئِ ځکه
دا بلا په تاسي پريوتلي دَه لکه چه نن ورځ ده ۲۴ او ارمياه ټولو خلقو ۲۴
او ښځو ته داسي وويل چه اي ټوله يهوداه چه دَ مصر په زمکه
يئِ دَ خداوند کلام واورئِ ۲۵ دَ لښکرو خداوند دَ اسرائيل الله دَسي ۲۵
وايِي چه تاسو او ستاسو ښځو پخپله خولې ويلي دِي او داخبره يې
په خپل لاسونو سره پوره کړي دِي وايئِ چه موږ به هغه نذرونه
چه موږ دَ آسمان دَ ملکي دپارَ دَ لُبانو سيزلو په باب اودَدي دَ
څښکلو هديو تويولو په باب منلي دِي په کولو وکړو نو تاسي په خپلو
نذرونو ټينګ شئِ او تاسو په خپلو نذرونو وفا وکړئِ ۲۶ دي دپارَ ۲۶
اي ټوله يهوداه چه دَ مصر په زمکه کښ اوسئِ دَ خداوند کلام
واورئِ ګورئِ خداوند وايِي چه ما په خپل لوي نوم قسم خوړلي دَي
چه ځما نوم به دَ يهوداه دَ خلقو په منځ کښ دَ مصر په ټوله
زمکه کښ دَ هيڅا له خولې و نه وزي چه هغه به ووايي چه خداوند
الله ژوندي دي ۲۷ ګورئِ زه به هغو ته له هغو سره دَ بدِي کولو دپارَ ۲۷
او نه دَ نيکي دپارَ ورته بيدار شم او ټول خلق دَ يهوداه چه دَ مصر
په زمکه کښ دِي په توري او په قحط سره تمام شِي ترهغه پوري
چه ختم شِي ۲۸ او هغوي چه له توري خلاص شِي او دَ مصر له ۲۸
زمکي نه دَ يهوداه په زمکه کښ بيرته راشِي لکوټي به وِي او ټول

باقیه دَ یهوداه چه دَ مصر زمکي له ځي چه هلته مقام وکړي پوه به
۲۸ شي چه دَچا کلام به ثابت شي ځما یا دَ هغو ۲۹ او ستاسو دَپاره دا نښه
ده خداوند وايي چه زه به هم په دي ځاي کښ سزا درکړم ځکه چه
تاسو پوه شئ چه ځما خبري په تاسو باندِ دَ بلا راتلو په باب به په یقین
۳۰ سره ثابتي شي ۳۰ خداوند داسي وايي گوره زه به دَ مصر بادشاه
فرعون حفرع دَده دښمنانو په لاس کښ او دَ هغو په لاس کښ چه
دَده دَ ځان غوښتونکي دي ورکړم لکه چه ما دَ یهوداه بادشاه صدقیاه
لره دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرځر په لاس کښ ورکړي دَي چه دَ
هغه دښمن او دَ ځان طلبګار ئي وه ❊

# پنځه څلویښتم باب

۱ آ هغه کلام چه ارمیاه نبي باروک زوي دَ نیریاه ته هغه وقت و وایه
چه ده هغه خبري دَ ارمیاه له خولي نه دَ یهوداه دَ بادشاه یهویقیم زوي
۲ دَ یوسیاه په څلورم کال په کتاب کښ لیکلي وي ۲ چه خداوند دَ
۳ اسرائیل الله تا ته اي باروک داسي وايي ۳ تا وِو چه هَي هَي په ما باندِ
چه خداوند ځما دَ درد غم زیات کړي دَي زه په آهونو آهونو کولو
۴ ستړي کیږم او آرام بیا نه مومم ۴ ته به دي ته داسي ووایي چه خداوند
داسي وايي گوره هغه چه ما جوړ کړي دَي زه به ئي ونړوم او هغه
۵ چه ما لګولي دَي زه به ئي وکاږم یعني دا ټوله زمکه ۵ او ته دَ خپل
ځان دَپاره غوره څیزونه غواړي څه؟ مه ئي لټوه گوره زه به په ټول
بشر بلا نازله کړم خداوند وايي مګر زه به ستا ځان په ټولو ځایونو
کښ چه ته ورشي تا ته به ئي دَ غنیمت په شان ورښښم ❊

# شپږ څلویښتم باب

۱ آ دَ خداوند کلام چه ارمیاه نبي ته دَ غیر قومونو په باب ورسید
۲ ۲ دَ مصر په باب دَ مصر دَ بادشاه فرعون نکوه دَ فوځ په باب چه
دَ فرات دَ دریاب په غاړي په کرکمیس کښ وه چه هغه دَ بابل بادشاه

نبوکدرضر دَ یهوداه دَ بادشاه یهویقیم زوي دَ یوسیاه په څلورم
کال کښې و واهه
٣ کنکلُ او ډالونه طیار کاڼږئ او جنګ ته راځئ ٤ آسونه زین ٣ ٤
کړئ اي سوارو وخیژئ او خولونو سره ودرېږئ نیزي تیري کړئ زغري
واغوندئ ٥ څه مې لیدلي دي؟ چه هغوي دَهشت وهلي دي او ورستو ٥
جاروتلي دي بناغلیو ئې ماتې شوي دي چه یو وار په تېښته ځي او په
ورستو نه ګوري ځکه چه په خلورو طرفونو وېره ده خداوند وايي
٦ ګړندي به په ونه تښتي او نه به بناغلي خلاص شي هغوئه تیندک ٦
وخوري او دَ قطب په لوري به دَ فرات دَ دریاب په غاړي پرېوزي
٧ هغه څوک دي چه دَ نیل په دود راخیژي او اوبه ئې دَ سیلابونو ٧
په شان خوړخوړي کوي ٨ مصر دَ نیل په دود خیژي او اوبه ئې دَ ٨
رودونو غوندې خوړخوړي کوي او وايي چه زه به وخیژم او زمکه به پټه
کړم زه به ښهر او اسیدونکي ئې نابود کړم ٩ اي آسونو وخیژئ او ٩
اي ګاډیو وګرېږئ او بهادران دې ووزي کوش او فوط چه له کنکلونه
نیسي او لودي چه دَ لندې نیسي او راکاږي ١٠ ځکه چه دغه دَ ١٠
خداوند دَ لښکرو ورځ ده او دَ بدل اخستلو ورځ دي دَپارَ چه
دي له خپلو دښمنانو بدل واخلي او توره به ئې وخوري او مړه
به شي او دَ هغو له وینو به سیرابه شي ځکه چه دَ خاوند یهوه
دَ لښکرو دَپارَ دَ قطب په زمکه کښې دَ فرات په غاړه ذبیحه مقرّره
ده ١١ اي دَ مصر پېغلي لوري جلعاد ته وخیژه او بلسان واخله ته ١١
بې فائدي ډېر دارو استعمال کوي تا لره جوړولې نشته ١٢ قومونو ستا ١٢
دَ رسوائي حال واوریده او ستا له چیغو نه زمکه ډکه شوه ځکه چه
بناغلي په بناغلي بانْدې ډکه وخوړه هغوي دواړه سره پرېوتلي دي
١٣ هغه کلام چه خداوند ارمیاه نبي ته ووایه چه څرنګ ١٣
دَ بابل بادشاه نبوکدرضر دَ مصر دَ ملک وهلو ته رابه شي ١٤ په ١٤

مصر کښې ښکاره کړئ په مجدال کښې مشهور کړئ هلته کښې په
نوف او په تحفنحیس کښې منادي وکړئ دا ووایئ چه تنګ شئ ځان
۱۵ طیار کړئ ځکه چه توري ستا څلور طرفونه خوړلي دي ۱۵ څه سبب
دئ چه ستا ښاغلي تېل وهلي شول هغه ولاړ دریدلي نه شه
۱۶ ځکه چه خداوند هغه پرزولي دي ۱۶ به ډېرو ئي ټېندک وخوړ هو
یو په بل پرېوتل او هغوي ووې چه پورته شئ او مونږ د به خپلو
خلقو کښې او په خپل وطن کښې د هلاکوونکي توري له مخې بېرته
۱۷ وګرځو ۱۷ هغوي هلته کښې آواز وکړ چه د مصر د بادشاه فرعون
۱۸ نوم آوازه ده هغه خپل مقرر وقت تېر کړي دي ۱۸ هغه بادشاه
چه نوم ئې خداوند د لښکرو دئ داسې وائي چه په خپل ژوند م
قسم دئ لکه چه تبور په غرونو کښې او لکه کرمل د بحر د دریاب
۱۹ په غاړې دئ هم هسې به هغه راشي ۱۹ اي لوري د مصر اوسېدونکي
ته د بندیواني د پاره خپل اسباب طیار کړه ځکه چه نوف به وران
۲۰ او وسېځلي شي چه یو اوسېدونکي په کښې پاتي نه شي ۲۰ مصر
۲۱ بې شانه ښه سخې ده مګر خرابي راځي د قطب له زمکي راځي ۲۱ د
هغه مزدوران هم د هغه په منځ کښې د پادي د سخوندرو په شان
دي لیکن هغوي هم وګرزېدل هغوي یو ځاي وتښتېدل هغوي
و نه دریدل ځکه چه د هغوي د هلاکت ورځ وربانده راغلي ده
۲۲ په دوي د بدل اخستلو وقت ۲۲ د هغه آواز به د مار غوندې ځي
ځکه چه هغوي به له فوځ سره تاخت وکړي او تبرونه به واخلي د
۲۳ لرګېنو په دود به وربانده راشي ۲۳ هغوي به د هغه ځنګل پرې کړي
خداوند وائي اګر که هغه د لټولو قابل نه شي ځکه چه هغوي
۲۴ له ملخانو زیات بلکه بې شماره دي ۲۴ د مصر لور به شرمنده
۲۵ کړي شي د قطب د قوم په لاس کښې به مبتلا شي ۲۵ خداوند
د لښکرو د اسرائیل الله وائي ګوره زه به نواموں او فرعون او

مصر او دَ هغه معبودان او دَ هغه دَ بادشاهان یعني فرعون او
هغوي ته چه په ده باندِ تکیه لرِي سزا ورکړم ۲۶ او زه به دوي ۲۶
دَ هغو په لاس کښې ورکړم چه دَ دوي دَ ځان غوښتونکي دِي یعني
دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرضر په لاس کښې او دَ هغه دَ نوکرانو په
لاس کښې مګر پس له هغه به دوي داسي آباد شِي لکه چه په
وړاندنیو ورځو کښې دُو خداوند وایِي ۲۷ مګر ته اي ځما بنده یعقوب ۲۷
مه ویرېږه او نه اي اسرائیل مه ترسیږه ځکه ګوره زه به تا ته له
لرِي او ستا اولاد ته به دَ دوي دَ بندیوانِي له زمکي نه خلاصِي
ورکړم او یعقوب به راوګرزِي او په آرام او په آسودګِي به اوسي
او هیڅوک به لِي نه ویرِوِي ۲۸ اي ځما بنده یعقوب مه ترسیږه خداوند ۲۸
وایِي ځکه چه زه درسره یم اګر که زه هغه ټول قومونه چه ته
مې په کښې شړلي يي فنا کړم نو هم تا به فنا نه کړم مګر زه به په
انصاف سره ستا تنبیه کوم مګر بي سزا به دِ بیخي پرې نه ږدم ٭

## اوه څلوېښتم باب

آ دَ خداوند کلام چه ارمیاه نبي ته دَ فلسطانو په باب ورسید ۱
پخوا له هغه چه فرعون غزه وواهه ۲ خداوند داسي وایِي ګوره دَ قطب ۲
له لورِي اوبه راخیژِي او هغه به دَ سیلاب رود شِي او په زمکي
او په ټولو چه په هغي کښې دِي او په ښهر او دَ هغه په اوسیدونکو
به زیات وبهیږِي هغه وقت به سړِي ناري وکړِي او دَ ملک ټولو
اوسیدونکي به هیٔ هایٔ کوِي ۳ دَ هغه دَ قوتناکو دَ سمونو دَ دربولو له ۳
آواز نه دَ هغه دَ ګاډیو له ګړهار نه او دَ هغه دَ څرخونو له ګړیدو
نه به پلار دَ خپلو لاسونو له کمزورِي نه دَ خپلو زامنو په لورِي و
نه ګورِي ۴ دا به دَ هغي ورځي په سبب وِي چه راځِي چه ټول ۴
فلسطیان لوټ کاندِ او له صور او له صیدا نه هر مددګار چه باقِي
پاتي شوي دِي پریکړِي ځکه چه خداوند به فلسطیانو لره دَ کفتور

۵ دَ جزيري دَ غاري پاتي شويو خلقو لره لوټ کړي ۵ په غزه باندِ دَ سر
خريل راغلي دِي عسقلون دَ خپلي خوري دَ باقيو سره نيست نابود شول
۶ ته به ترڅو پوري خپل ځان پريکوي ۶ اي دَ خداوند توري ته به تر
څو پوري نه ودريږي ته پخپل تيکي کښ کيږده آرام وکړه او قراره اوسه
۷ ۷ ته څرنګ قرار شي ځکه چه خداوند په عسقلون او دَ قعرِ درياب په
غاري باندِ ستا حکم درکړي دَي ده هغه هلته مقرّره کړي دَه ٭

## اته څلويښتم باب

۱ ۱ دَ موآب په باب خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل الله داسي وايي
هَي هَي په نبو باندِ چه هغه تباه شوي دَي قريتيم رسوا شه او واخستلي
۲ شه مسجاب خجل شه او مات شوي دَي ۲ دَ موآب صفت بيا نشته
هغوي په حشبون کښ ئي په هغه باندِ بد مصلحتونه ورکړل چه راشيئ
چه مونږ ئي پري کړُو چه هغه قوم نه وِي ته به هم اي مدمينه خاموش
۳ کړي شي توره به درپسي ځِي ۳ په حورونيم کښ به دَ چيغو وهلو
۴ آواز کيږي ويراني او لوي هلاکت ۴ موآب برباد شه دَده بچي دَخپلي
۵ ژړا آواز آورِوي ۵ ځکه چه دَ لوحيت په ختلو په ژړا باندِ ژړا زياتيږي
په يقين سره دَ حورونيم په کوزيدلو دَ تنګي دَ هلاکت آواز آوريدلي
۶ دي ۶ تښتئ خپل ځانونه خلاصوئ او په بيابان کښ دَ لغړوني په
۷ دود شئ ۷ او دي د پاره چه
تا په خپلو کارونو او خزانو تکيه وکړه و به
نيولي شي او کموس به دَ خپلو کاهنانو او سردارانو سره بند ته
۸ ووځي او په هر ښهر به لوټيري راشي او هيڅ ښهر به خلاص نه
شي خوره به هم ويرانه شي او ميدان به ويرانه شي لکه چه خداوند
۹ ويلي دِي ۹ موآب ته وزر ورکړئ چه والوزي او لاړ دِ شي او دَده
ښهرونه به ويجاړ شي او هيڅ اوسيدونکي به په کښ پاتي نه شي
۱۰ لعنتي دِ هغه وِي چه دَ خداوند کار له سُستي سره کوي او لعنتي

۱۱ دِ هغه وِي چه خپله توره له وینو نه منعَ کوِي ۱۱ مواب
لــــه خــــپل هلکوالِي په آرام دَي او دي په خپلو ذرديو
کښ ناست دَي او ده له یوه لوښي بل لوښِي ته تش شوي نه دَي
نه په بند تلي دَي څکه دَ هغه مزه هم په هغه کښ پاتي شوه او
۱۲ بوي ئي بدل نه شه ۱۲ نوګوره هغه ورځي راځي خداوند وايِي چه
زه به توبونکي هغه څخه واستوم چه دوي به هغه توبه او دَ هغه
۱۳ لوښي به خالِي کرِي او دَ هغه مرتبانونه به مات کرِي ۱۳ نو به مواب
له کموش نه شرمنده شِي لکه چه دَ اسرائیل کور له بیتِ ایل نه
۱۴ چه دده تکیه وه شرمنده شــــه ۱۴ تــاسو
څــــــــه وايِئ چه مونږ پهلوانان یُو او دَ جنګ دَ پارَ
۱۵ زوراور سرِي یُو ۱۵ مواب لوټ شه دَ هغه دَده په ښهرونو وختل
او دَ هغه غوره غوره ځوانان دَ قتلیدو دَپارَ کوز شول هغه بادشاه
۱۶ وايِي چه نوم ئي خداوند دَ لښکرو دَي ۱۶ نږدي دَي چه په مواب آفت
۱۷ راشِي او تنګِي ئي په دو راځي ۱۷ اي ټولو چه دَده چاپیره يئِ په ده
باندِ ارمان کوئِ او تاسو ټول چه دده په نوم خبر يئِ ووايِئ چه دغه
۱۸ غوټه امسا او ښائسته لوړ څه رنګ مات شول ۱۸ اي دَ دیبون
لوري چه دَ هغه ځاي اوسیدونکي يي له خپله عزّته کوز راشه او په
تنده کښینه څکه چه دَ مواب شوکونکي په تا وخيژي او ستا قلاوي
۱۹ ئي هلکي کري ۱۹ اي دَ عاعر اوسیدونکیو تاسو په لاري ودريږئِ او نظر
کوئِ له تښتیدونکیو او له هغي نه چه خلاصيږي پوښتنه وکرئِ او
۲۰ وايِئ چه څه شوي دَي ۲۰ مواب رسوا شه څکه چه و نړاوه شه ته
هي هاي اوچیغي وهه او په ارنون کښ مشهور کرِه چه مواب
۲۱ ویران شوي دَي ۲۱ او چه دَ صحرا په لوري په حولون او په جهضاه او
۲۲ ۲۳ په موفعت ۲۲ او په دیبون او په نبو او په بیت دبلتیم ۲۳ او په قریتیم
۲۴ او په بیتِ جمول او په بیتِ معون ۲۴ او په قریوت او په بصره باندِ او

دَ موآب دَ زمکي په ټولو ښهرونو چه لري یا نژدي دِي په ټولو باندي
۲۵ عدالت راغي ۲۵ دَ موآب ښکر پریکړي شه او وزر ئي مات شه خداوند
۲۶ وایِي ۲۶ ته هغه کیَفي کړه څکه چه ده ځان خپل دَ خداوند په مقابل
بلند کړي موآب به په خپل ِقي کښ و رغړي او یوه مسخره به ِشي-
۲۷ ۲۷ اسرائیل ستا دَ وړاندِ مسخره نه وه څه؟ هغه دَ غلونو په مینځ
کښ بیا وموند شه څه؟ چه هرکله چه تا به دده خبره کوله نو خپل
۲۸ سر به دِ خوځاوه ۲۸ اي دَ موآب اوسیدونکیو ښهرونه پریږدئِ او په
کمرونو اوسئِ او دَ کوتر په شان شئِ چه دَ ژوري دَ خولي په کنارو
۲۹ کښ ځاله جوړوِي ۲۹ مونږ دَ موآب کبرجنِي اوریدلي ده هغه بیحدَ مغرور
دَي دَ هغه گستاخِي هم او دهغه شیخِي او دهغه فخر او دهغه دَ زړه کبر-
۳۰ ۳۰ زه دَ هغه په غصّي پوهیږم چه هیڅ نه ده خداوند وایِي اودَ هغه
۳۱ دَ فخرونو چه له دغو هیڅ جوړ نه کړل ۳۱ دي دَپارَ به زه دَ موآب دَپارَ
هَي هَي وکړم دَ ټول موآب دَپارَ به ناره وکړم دَ قیرحرس دَ خلقو دَپارَ
۳۲ به وِیر وکړي شِي ۳۲ اي دَ سبمه انګورو زه به دَ یعزیر دَ ژړلو نه
زیات ستا دَپارَ وژاړم ستا څانګي دَ دریاب پوري خوا تیري شوي
دَ یعزیر دریاب ته رسیدلي دِي ستا دَ ووړي په میوو باندِ او ستا
۳۳ دَ انګورو په کوچو شوکونکي راغلي دَي ۳۳ له میوه‌دار باغ نه او دَ
موآب له زمکي نه خوښِي او خوشحالِي پورته شوله او ما داسي وکړل
چه دَ انګورو په چرخشتونو کښ شراب پاتِي نه شِي اوس به ئي هیڅوک
۳۴ په نارو سره نه و مږي دَ هغو ناري وهل به ناري وهل نه وِي ۳۴ دَ
حشبون له ژړا نه هغوي خپل آواز تر الیعالِي او تر یهاض پوري
او له صغر نه ترحورنیم پوري تر اګلات شلیشیاه پوري اوچتوِي څکه
۳۵ چه دَ نمریم اوبه هم خرابِي شوي دِي ۳۵ او زه به هم داسي وکړم
خداوند وایِي هغه چه په اوچت مکان باندِ قربانِي خیژوِي او هغه
چه دَ خپلو معبودانو دَ وړاندِ خوشبوئِي سوزِي دَ موآب له منځَ به

موقوف شِي ۳۶ نو خما زړه دَ موآب دَپارَ دَ نورئِ په دود آواز کوِي او ۳۶
خما زړه دَ قیرحرس دَ خلقو دَپارَ دَ نورئِ په دود آواز کوِي ځکه چه
هغه دولت چه دَ ګټلي وه ضایع شوه ۳۷ په تحقیق سره په هريو ۳۷
سر بِک دَي او هره يوه بيره کله کيږي په ټولو لاسونو زخمونه دِي
او په ملاؤ شيږيِ ۳۸ دَ موآب دَ ټولو کوروېو په بامونو او دَ هغو ۳۸
په ټولو بازارونو کښ لوي وير دَي ځکه چه ما موآب دَ هغه لوښي په
دود چه خوښ نه ښي مات کړي دَي خداوند وايي ۳۹ هغوي څرنګ ۳۹
هَي هَي وکړي هغه څه رنګ مات شه موآب دَ شرم په سبب څله خپله
شا وګرزوله هم هغه شان موآب به دَ هغو ټولو دَپارَ چه ورنه
چاپېره دِي دَ خنداؤ دَ دهشت باعث شه ۴۰ ځکه چه خداوند داسي وايي ۴۰
چه ګوره هغه به دَ ګجير په دود والوزي او خپلي وزر به په موآب
باندِ وغوړوِي ۴۱ قریوت اخستلي شه او قلاوي ناڅاپه ونیولي شوي ۴۱
او په هغه ورځ به دَ موآب دَ بهادرانو زړه دَ لنګيدونکي ښځي دَ
زړه په دود وِي ۴۲ او موآب به هلاک کړي شِي تر دي حده چه قوم ۴۲
به نه وِي دي دَپارَ چه ده دَ خداوند په مقابلي کښ ځيل ځان بلند
کړ ۴۳ دهشت او ډوغل، او دام په تا باندِ دِي اي دَ موآب اوسيدونکي ۴۳
خداوند وايي ۴۴ هغه چه له دهشت نه تښتي به ډوغل کښ به پريوزي ۴۴
او چه له ډوغلي ووزِي په دام کښ به ونښلي ځکه چه زه به هغو
باندِ هو په موآب باندِ به دَدوي دَ سزا کال راولم خداوند وايي -
۴۵ هغوي چه وتښتيدل دَ حشبون تر سيوري لاندِ بيطاقت شوي ۴۵
ودريدي مګر له حشبونَ به اور او له صيحونَ به يوه شعله راوتلي
دِي او دَ موآب څنګ او دَ هرٔ يوه فسادِي ککرئِ ئي خوړلي دِه ۴۶ هو ۴۶
په تا باندِ اي موآبَ دَ کموس خلق هلاک شول چه ستا زامن ئي
په بند بوتل او ستا لوڼي بنديواني ته ۴۷ او سـره ۴۷
لـه دي به زه په آخرو ورځو کښ دَ موآب بنديواني

را وګرزوم خداوند وايي دَ موآب عدالت تر دي ځايه وشه +

## نه څلويښتم باب

۱ آ دَ بني عمون په باب خداوند وايي دَ اسرائيل زامن نشته دي څه؟
دَ هغه هيڅ وارث نشته څه ؟ نو ولي ملک ئې جاد په ميراث اخلي
۲ او دَ هغه خلق ئې په ښهرونو کښ اوسي ۲ دي دپاره کوره هغه ورځې
راځي خداوند وايي چه زه به داسي وکړم چه دَ بني عمون په ربّه کښ
به دَ جنګ زوږ واوريده شي بلکه هغه به يو ويرانه توده شي
او دَ هغه لوڼي به په اور وسيځلي شي نو به اسرائيل دَ هغو چه
۳ دَده وارثان وُو وارث شي خداوند وايي ۳ اي حشبونَ هاي هي کوه
چه عَي برباد کړي شه اي دَ ربّه لوڼو ناري کوئ او به خپلي ملا
ټبيرئ و ژړئ وير کوئ او دَ ښهر په وياړو دي پلو هغه پلو ته
ورغلئ ځکه چه ملکُّم به په بند لاړ شي او دَ هغه کاهنان او دَ
۴ هغه سرداران به ورسره وشي ۴ ته ولي په خوړو باندِ فخر کوي ستا
خوړي له آبادي بهيږي اي برګشته لوري په خپلو خزانو فخر کوي چه
۵ څوک تر ما پوري راتلي شي ۵ کوره خداوند دَ لښکرو وايي زه به
په تا باندِ دَ هغو ټولو چه ستا په ګردا ګرد ويره راولم او له تاسي
به هر يو دَ هغه له وړاندِ نه وشاړه شي او هيڅوک به نه وي چه
۶ تار به تار شوي سره ټول کړي ۶ مګر پس له هغه به زه دَ عمونيانو
بنديواني را وګرزوم خداوند وايي
۷ ۷ دَ عدوم په باب خداوند دَ لښکرو داسي وايي چه په
تيمان کښ دانايي بالکل نشته څه؟ له عقلمندو مصلحت لاړه شه
۸ څه ؟ دَ هغو دانائي والوته څه ؟ ۸ اي دَدان اوسيدونکو پسته
ولښئ او په ژورو کښ اوسئ ځکه چه زه به په هغه باندِ دَ
۹ عيسو آفت په هغه وقت چه بدله ورنه اخلم نازل کړم ۹ که
چيري انګور ځندونکي تا ته درشي نو به څه انړولي پري نه ږدي څه؟

یا که په شپه کښې غلونه درشي نو څو چه بس ئې نه وِي برباد به نه کړي
څه ؟ ۱۰ مګر ما عیسو بالکل لڅ لغړ کړي دَي دَ هغه پټ مکانونه ۱۰
مې بې ستره کړي دِي چه دي خپل ځان پټ کړي نه شي دَ هغه
اولاد او دَ هغه ورونړه او دَ هغه ګاونډیان فنا شول او هغه
نشته ۱۱ ته خپل یتیمان زامن پرېږده زه به هغه ژوندِي ساتم او ستا ۱۱
کونډې دِ په ما باندِ توکّل وکړي ۱۲ خداوند داسې وايي ګوره هغوي چه ۱۲
دَ پیالې څکلو حق ئې نه وه هغوي به ئې ښه وڅښي او ته هغه یې
چه بې سزا موندلو ووزې څه؟ ته به بې سزا موندلو لاړ نه شې مګر
په یقین سره به ئې وڅښې ۱۳ ځکه چه ما په خپل ذات قسم خوړلې ۱۳
دَي خداوند وايي چه بصره به حیراني او ملامتیا او ویراني او لعنت
شي او دَدې ټول ښهرونه به مدام ویراني وِي ۱۴ ما له خداوند نه یو ۱۴
خبر واورید بلکه یو رسول قومونو ته واستولې شه چه تاسې سره
ټول شئ او په هغه باندِ راشئ او جنګ ته پاڅئ ۱۵ ګوره ما ته دَ غیر ۱۵
قومونو په منځ کښې وړوکې کړي او دَ آدمیانو په منځ کښې ذلیل ۱۶ ستا ۱۶
هیبت ستا دَ زړه غرور تا ته فریب درکړي دَي اي ته چه دَ کمرونو په
چودو کښې اوسې او دَ غره څوکې نیسې اګر که ته خپله ځاله دَ ګجیر
په دود اوچته جوړه کړې نو هم زه به دِ له هغه ځایَ راکوز کړم خداوند
وايي ۱۷ او دَ ادوم به هم دَ حیراني ځاي شي هر یو چه دَ هغه په لوري ۱۷
تېر شي حیران به شي او دَ هغه دَ ټولو آفتونو په سبب به شپیلکې
وکړي ۱۸ لکه اړول دَ سدوم او دَعموراه او دَ دغو دَ شاؤخوا ښهرونو به ۱۸
هغه کښې به هم سړي و نه اوسې نه به آدمزاد په کښې پاتې شي
خداوند وايي ۱۹ ګوره هغه به دَ زمري په دود دَ اردن له مغروري نه ۱۹
را ووزي په قدیمي څراګاه به وخېژي مګر زه به په سترګه اشارت ورته
وکړم او هغه به دَ هغه له مخې نه وتښتوم مګر هغه کوم غوره دَي
چه زه ئې مقرّر کړم په هغې باندِ ځکه چه ما غوندِ څوک دَي څوک دَي

چه څما دَپارَ وقت مقرّر کړي او هغه شپون څوک دَي چه څما په حضور
٢٠ به ودرېږي ٢٠ دي دَپارَ دَخداوند مصلحت چه ده دَ ادوم په خلاف کړي
دَي او دَده ارادي چه دَ تیمان دَ اوسیدونکیو په مخالفت کښ کړي دِي
واورئِ په یقین سره هغوي چه په رمي کښ وړوکي دِي هم هغه به سره
٢١ وښکوي په یقین سره به دَ هغو څرالګاه له هغو سره ویرانه کړي ٢١ دَ هغه
دَ پړیوتلو له آواز نه زمکه ولړزیږي دَ ناري وهلو آواز وقلزم دریاب ته
٢٢ اوریدلي شِي ٢٢ ګوره هغه به را وخیژي او دَ ګجیر په دود به والوزي او
په بصرې باندِ به خپل وزر وغوړوي او به هغه ورځ به دَ آدوم دَ بهادرانو
زړه دَ هغي ښځي دَ زړه په دود شي چه دَ لنګانه په درد کښ وِي
٢٣ ٢٣ دَ دمشق په باب حمات او ارفاد حیران شوي دِي ځکه چه
دغو بد خبرونه اوریدلي دي دوي ویلي کیږي په قعرِ دریاب غم دَي چه نه
٢٤ کیدلي نه شِي ٢٤ دَمشق ضعیف شه دَ تښتیدلو دَپارَ ئي مخ وګرزاوه
لړزه ئي ونیوه درد او رنځ دَ هغي ښځي په دود چه دَ لنګانه درد پري ورشِي
٢٥ نیولي دَي ٢٥ څنګه دَي چه هغه صفتي ښهر څما خوشحاله ښهر باقي نه شه
٢٦ ٢٦ نو دده ځوانان به دَده په بازارونو کښ پریوزي او ټول جنګي میړونه
٢٧ به هغه ورځ خاموش شِي خداوند دَ فوځونو وايي ٢٧ او زه به دَ دمشق
٢٨ په دیوال کښ اور بل کړم چه دَ بن هداد محلونه وخوري ٢٨ دَ قیدار په
باب او دَ حصور دَ بادشاهتونو په باب چه دَ بابل بادشاه نبوکدرځر
وهلي دِي خداوند وايي چه پاسئِ په قیدار وخیژئِ او دَ مشرق خلق
٢٩ وشوکوئِ ٢٩ دَ هغو خیمي او رمي به دوي ورنه واخلي دَ هغو پردي او
ټول لوښي او دَ هغو اوښان به دوي دَ خپل ځان دَپارَ واخلِي او دوي
٣٠ به هغو ته ناري وهِي چه په ځلورو طرفونو ویره دَه ٣٠ وتښتئِ لري
لاړ شئِ په ژورو کښ اوسئِ اي دَ حصور اوسیدونکیو خداوند
فرمايي ځکه چه دَ بابل بادشاه نبوکدرځر ستا په مخالفت کښ مصلحت
٣١ کړي دَي او ستاسو په خلاف ئي اراده کړي دَه ٣١ پاسئِ او په هغه

آسوده قوم چه بي‌فکرَ اوسِي وخبرِيِ خداوند وايي چه دَ هغه نه دروازي
نه ازمونه شه او يوازي اوسِي ۳۲ او دَ هغو اوښان به دَ شوک دَپارَ ۳۲
وِي او دَ هغو ډير ډير چارپايان به دَ لوټ دَپارَ او زه به هغه
خلق چه دَ ډيرو ښکونه ئي خرِيي ټول باد لره تار په تار کړم اوزه
به دَ هغو آفت له ځلورو طرفونو ورباندِ راولم خداوند وايي ۳۳ او ۳۳
حصور به دَ گيدړو مقام مدام ويرانه وِي هلته کښ به هيڅ سړي
نه اوسِي او نه به هيڅ آدمزاد په هغه کښ مقام وکړي
۳۴ دَ خداوند کلام دَ يهوداه دَ بادشاه صدقياه دَ بادشاهت ۳۴
په شروع کښ دَ عيلام په باب ارمياه نبي ته ورسيده اووئي ويل
۳۵ چه خداوند دَ فوځونو داسي وايي گوره زه به دَ عيلام لنده دَ هغوي ۳۵
دَ قوت سر مات کړم ۳۶ او زه به څلور سره هوا دَ آسمان له ځلورو ۳۶
کونو نه به عيلام باندِ راولم او دَ هغو ځلورو هواوُ به لورِي به ئي
تار په تار کړم او داسي به هيڅ قوم نه وِي چه هغه ته دَ عيلام
شړلِي شوي و نه رسيږي ۳۷ ځکه چه زه به عيلام دَ هغو دَ دښمنانو ۳۷
دَ وړاندِ او دَ هغو دَ وړاندِ چه دَدوي دَ ځانونو طلبکار دِي په ويره
کښ کړم او زه به په هغو باندِ يوه بلا يعني خپل سخت قهر نازل
کړم خداوند وايي او توره به ورپسي کړم تر دي حده چه نابود کړي
مِ دِي ۳۸ او زه به خپل تخت په عيلام کښ کيږدم او له هغه ځاي ۳۸
به بادشاه او سرداران ورک کړم خداوند وايي
۳۹ مگر په آخرو ورځو کښ به داسي وشِي چه زه به دَ عيلام ۳۹
بنديواني را وگرځوم خداوند وايي ÷

## پنځوسم باب

آ هغه کلام چه خداوند دَ بابل په باب او دَ کسديانو دَ زمکي په باب دَ ۱
ارمياه نبي په وسيله وفرمايه ۲ تاسي ئي دَ قومونو په منځ کښ بيان کړئ ۲
او مشهور ئي کانږئ او نښان ودروئ منادي کوئ په پټه ئي مه کوئ وايئ

چه بابل واخست شه بیل رسوا شه مردوک ټوکړه ټوکړه شوي دي بتان
۳ ئي شرمنده شول او صورتونه ئي ټوکړه ټوکړه شول ۳ ځکه چه له قطب
نه یو قوم وربانډ خیژي چه دَ هغه زمکه به ویجاړه کړي او هیڅوک
به په کښ نه اوسي هغوي تښتیدلي دِي هغوي روان شول که انسان
۴ دِي که حیوانات ۴ په هغو ورځو کښ او په هغه وقت کښ خداوند وائي
چه بني اسرائیل به راشي دوي او بني یهوداه به یو ځاي سره په ژړا
۵ ژړا لاړ شي او خداوند الله خپل به ولټوي ۵ دوی به په هغه لوري
مخ کړيُ دَ صیحون دَ لارې پوښتنه به کوي چه راشئ چه مونږ ځپله له
خداوند سره ملیا شو په یو ابدي عهد کښ چه هیچرې هیر نه شي
۶ ۶ خما خلق دَ ورکو شویو ګډو په دود شول دَ هغوي شپنو هغوي
غلطي کړي دِي هغوي وغرونو ته وګرزولي هغوي له غرونو نه غونډیو
۷ ته لاړي او خپل شپول ئي هیر کړي دَي ۷ هغوي ټولو چه موندلي
نغرلي ئي دِي او دښمنانو ئي وویل چه مونږ ګرم نه یُو ځکه چه دَخداوند
ګناه ئي کړي دَه هغه خداوند چه دَ صداقت ځاي دَي هو هغه خداوند
۸ چه دَ هغو دَ پلرونو او دَ نیکونو امیدګاه دَي ۸ له بابل نه وتښتئ او
دَ کسدیانو له زمکي ووزئ او دَ هغو وزونو په دود شئ چه دَ رمو دَ
وړاندِ وړاندي ځي
۹ ۹ ګوره زه به دَ قطب له زمکي نه دَ لویو قومونو نه یو ټولي ودروم
او په بابل بانډ به ئي راولړم او هغوي به دَ هغه په برابري صفونه وتړي
هغوي به له هغه ځاي نه به واخستلي شي دَ هغوي غشي به دَ کارآزموده
۱۰ مړنیو دَ غشیو په دود وِي هیڅوک به خالي پسته را نه شي ۱۰ کسدستان
به لوټ کړي شي هغوي ټول چه لوټ ئي کړي پرِ ماړه به شي خداوند وائي
۱۱ ۱۱ اګر که تاسو خوشحال وئ او خوښي مو وکړه اي خما دَ میراث لوټونکیو
ځکه چه تاسو دَ سخئ په شان چه په واښو کښ تربیري او دَ آسونو غونډ
۱۲ و ششیږیدلي ۱۲ نو ستاسو مور به ډیره شرمنده شي هغه چه تاسي

ني وزيږولي سوړ مخ به شي گوره هغه دَ قومونو وروستو قوم ده بيابان
شوي وچه زمکه شوله او ويرانه دَه ١٣ دَ خداوند دَ قهر په سبب ١٣
به هغه آباد نه شي بلکه بيخي ويجاړ به شي هغه څوک چه له بابل
نه تير شي حيران به شي او دَ هغه دَ ټولو آفتونو په سبب به
شپيلکي کوي ١٤ تاسو بابل گير کړئ دَ هغه په مخالفت کښ صفونه ١٤
وتړئ اي ټولو لندو راکاږونکو په هغه باندِ غشي ولکوئ دَ غشيو
صرفه مه کوئ ځکه چه هغه دَ خداوند گنهگاره شوي دَه ١٥ هغه ١٥
گير کړئ تاسي پرِ ناري کړئ هغه تابعدارِي منظوره کړه دَ هغه
بنيادونه شړيدلي او ديوالونه ني ونړيدل ځکه چه دَ خداوند بدل
اخستل هم دا دِي چه ورنه واخلئ لکه چه هغه وکړل هم هسي
تاسو ورسره وکړئ ١٦ له بابل نه کرونکي او هغه چه دَ لو په وقت ١٦
لور لخلي پريږئ کړه دَ ظالم دَ توري له هيبت به هر يو له خپلو
خلقو ته راوگرزي او هر يو به خپلي وطن ته وتښتي
١٧ اسرائيل تار په تار شوي گډي دِي زمريو شړلي دي ١٧
وړمبي دَ آسور بادشاه خوړلي دَي او په آخر کښ دَ بابل دغه بادشاه
نبوکدرځر دَ هغه هډونه مات کړي دِي ١٨ ځکه خداوند دَ لښکرو دَ اسرائيل ١٨
الله داسي وايي چه گوره زه به دَ بابل بادشاه او دَده زمکي ته سزا
ورکړم لکه چه دَ آسور بادشاه ته مِ سزا ورکړي ده ١٩ او زه به ١٩
اسرائيل دَ هغه څراکاه ته بيرته راولم او په کرمل او په بسن کښ به
وڅري او دَ افرايم او دَ جلعاد په غره باندِ به ئي ځان موړ شي ٢٠
٢٠ په هغو ورځو او په هغه وقت کښ خداوند وايي دَ اسرائيل دَ بدي
په تحقيق وکړي شي مگر هيڅ به نه وي او دَ يهوداه خطا به ونه موندله
شي ځکه هغوي چه زه ئي باقي کړم معاف به ئي کړم
٢١ دَ مرتايم په زمکه باندِ او دَ فکود په اوسيدونکو وخيژه ٢١
ويران ئي کړه او ورپسي شه نابود ئي کړه خداوند وايي او هر څه

چه تا ته مِ فرمايلي دِي نو ته دَ هغه په موافق عمل وكړه ۲۲ دَ جنګ او ۲۲
دَ لوي هلاكت آواز په زمكي كښ دَي ۲۳ دَ ټولي دنيا څټک څرنګ پرېكړې ۲۳
او مات شه بابل دَ قومونو په مينځ كښ څرنګ دَ نيستي ځاي شه ۲۴ ما ۲۴
ستا دَ پاره دام و لګاوه او اي بابل ته ونيولي شوي مكر ته پرِ خبر
نه شولي ته موندَه شوي او ته ونيولي شوي ځكه چه تا له خداوند
سره جنګ كړي دي ۲۵ خداوند دِ خپلي وسلي كور پرانستلي دي او دَ خپل ۲۵
قهر وسلي ئې باهر راوړي دِي ځكه دغه كار چه دَ كسديانو په زمكي
كښ كيږي دَ خداوند دَ لښكرو دَ يهوه دَي ۲۶ له سره ئې ونيسئِ په ۲۶
هغه باندِ ور وخيژئِ او انبارخاني ماتي كړئِ او دَ تودو غوندِ ئې
شنديئِ او ورک ئې كړئِ او هيڅ شئ ئې مه پرېږدئ ۲۷ دَ هغه غوايان ۲۷
هلاک كانړئِ او هلته كښ و قصاب‌خاني ته ورولئِ هَي‌هاي په هغو
باندِ چه ورځ ئې راغلي دَه او دوي ته دَ سزا وركولو وقت ۲۸ دَ ۲۸
هغو چه دَ بابل له زمكي نه تښتي او خلاصيږي دا آواز به ئې كيږي
چه په صيحون كښ مشهور كړئِ چه دَ خداوند څمونږ دَ الله بدل
اخستل هو دَ خپل هيكل په سبب دده بدل اخستل دا دَي ۲۹ غشي ۲۹
وشتونكي را وبولئِ يو ځاي ئې كړئِ چه په بابل ورشي اي ټولو غشي
ويشتونكيو له هر طرف نه دَ هغه په برابر خيمه ودروئِ چه دَ هغه نه
هيڅوک دِ خلاصيدونكي نه وِي دَ هغه دَ كار په موافق بدله وركړئِ هر
څه چه دده كړي دِي ورسره و ئې كړئِ ځكه چه دده دَ خداوند دَ
اسرائيل دَ قدوس دَ وړاندِ لوي باغي توب وكړ ۳۰ دي دَ پاره به دَ هغه ۳۰
ځوانان په كوڅو كښ وپرزي او ټول جنګي ميړونه به په هغي ورځي خاموش
شِي خداوند وائي ۳۱ كوره اي ته چه ډير باغي ئې زه ستا مخالف يم ۳۱
خداوند دَ لښكرو وائِي په حقيقت سره ستا ورځ را ورسيده هو
هغه وقت چه په هغه كښ به زه سزا دركړم ۳۲ او هغه باغي به ۳۲
ټيندک وخوري او و به پرزي او هيڅوک به ئې پورته نه كړي او زه

به دَ هغه په بنهرونو کښې اور بل کړم او هر یو چه دَ هغه په شا او خوا
وِي و به ئې خوري
۳۳ خداوند دَ فوځونو داسي وائِي چه بنِي اسرائیل او بنِي یهوداه دواړه ۳۳
مظلومان شول او دَ دوي ټولو بندونکیو دوي سخت نیولِي دِي دَ دوي خلاصولو
ئې انکار وکړه ۳۴ دَ دوي خلاصونکي زوراور دَي خداوند دَ فوځونو ئې نوم دَي دَي ۳۴
به سر تر سره دَ دوي حجّت ثابت کړِي تاچه دَي زمکي ته راحت وبخښي او دَ
بابل اوسیدونکي و لړزوِي ۳۵ خداوند وائِي چه توره په کسدیانو باندِ او دَ ۳۵
بابل په اوسیدونکو او دَ هغه په سردارانو او دَ هغه په حکیمانو باندِ
ده ۳۶ په دروغژنو یوه توره دَه او هغوي به بي سده شِي دَ هغه په بهادرانو ۳۶
باندِ یوه توره ده او هغوي به هیبت ناک شِي ۳۷ دَ هغه په آسونو او په ۳۷
ګاډیو او په ټولو بیلو بیلو ذاتونو باندِ چه دَ هغه په منځ کښې دِي یوه توره
دَه او هغوي به دَ ښځو په دود شِي دَ هغه په خزانو باندِ یوه توره ده او دَ هغه
به لوټ کړي شِي ۳۸ دَ هغه به اوبو باندِ تنده ده او دغه به وچي شِي ځکه ۳۸
چه هغه دَ تراشلیو صورتونو ملک دَی او په خپلو بتانو خپل ځانونه احمقان
کړل ۳۹ دي دَپارَ به دَ ځنګل درندګان له لیوه ګانو سره هلته کښې اوسِي ۳۹
او شتر مرغان به ځاله په کښې جوړه کړِي او بیا به تر ابدَ پوري آباد نه شِي
او پیړئ په پیړئِ به هیڅوک په کښې استوګنه و نه کړِي ۴۰ لکه چه خدای ۴۰
سدوم او عموراه او ګاونډیان ئې واړول خداوند وائِي هم هسي به هیڅ سړی
هلته کښې و نه اوسِي او نه به آدمزاد په کښې مقام شِي ۴۱ ګوره یو قوم هو ۴۱
یو لوي ټولي به له قطب نه راشِي او ډیر بادشاهان به دَ زمکي له
سرحدونو پورته کړي شِي ۴۲ هغوي به لیندي او نیزي واخلِي هغوي بي صرفه ۴۲
او رحم و نه کړِي دَ هغوي آواز به دَ سمندر دَ شور په شان او هغوي به په
آسونو سواره شِي او دَ جنګي میړونو په دود به ستا په برابرِي اي دَ بابل
لوري صفونه و ترِئِ ۴۳ دَ بابل بادشاه دَ هغو خبر آوریدلي دَي او لاس ئې ۴۳
سُست شوي دَي پریشانئِ او دَ لنګیدونِي ښځي په دود دردونو ونیوه ۴۴ ګوره ۴۴

هغه به دَ ببر زمرِي په دود دَ اردن له مغرورِي نه راوخيژِي په مدامي
ځراګاه به وخيژِي مګر زهٔ به په سترګه اشارت ورته وکړم او هغوي به ورنه
وتښتوم مګر هغه غوره ځوک دَي چه زهٔ ئې ور باندِ مقرّر کړم ځکه چه
ما غوندِ ځوک دَي او ځوک دَي چه ځما دَ پارَ وقت مقرّر کړِي او هغه شپون
۴۵ ځوک دَي چه ځما په حضور ودريدلي ښِي ۴۵ دي دَ پارَ دَ خداوند مصلحت چه
دَ بابل په مخالفت کښ کړي دَي واوريِ او دَ هغه ارادي چه دَ کسديانو دَ
زمکي په مخالفت کښ کړي دِي په يقين سره هغه چه په رمي کښ او وړوکي
دِي هم هغه به وکاږِي په يقين سره دَ هغو ځراګاه په هغو باندي
۴۶ خرابه کړِي ۴۶ له هغه شور نه چه بابل واخست شه زمکه لړزيږِي
او ناره ئې په قومونو کښ اوريدله کيږِي *

# يو پنځوسم باب

۱ آ خداوند داسي وائِي زهٔ به په بابل باندِ او دَ ليب کمي په اوسيدونکيو باندِ
۲ يو هلاکونکي باد راوالوزوم ۲ او زهٔ و بابل ته بادونکي واستوم چه وني لوني
او دَ هغه زمکه به خالي کړِي دَ هغه غم په ورځ کښ له څلورو طرفو کبر
۳ کړِي ۳ په هغه باندِ چه لندي ښکوي او په هغه باندِ چه پخپلي زغري
فخر کوِي تيرانداز به خپلي لندي وښکوِي تاسو دَ هغه په ځوانانو رحم مه
۴ کوئِ دَ هغه ټول لښکر په يو ځل هلاک کړئِ ۴ هغوي چه قتل شوِي دِي
داسي به دَ کسديانو په زمکه کښ پريوزِي او هغوي چه ځيرلِي شوِي دِي
۵ دَ هغه په کوڅو کښ ۵ ځکه چه اسرائيل او يهوداه له خپل الله خداوند
دَ لښکرو ترک کړِي شوِي نه دِي اګر که دَ هغو وطن دَ اسرائيل دَ قدّوس
۶ له نافرمانِي نه مالامال ؤو ۶ دَ بابل له منځ په تيښته ووزئِ او هر يو دِ
خپل ځان خلاص کړِي دَ هغه په سزا کښ مه هلاکيږئِ ځکه چه دغه دَ
۷ خداوند دَ بدل اخستو وقت دَي دَ هغه بدله هم هغه ته ورکوِي ۷ بابل
دَ خداوند په لاس کښ دَ زرو پياله وه چه ټوله دنيا ئې کيفي کړه قومونو دَ هغې
۸ شراب وڅښل دي دَ پارَ قومونه مست دِي ۸ بابل يو په يو وړ پړوت او نابود

ته به هغه بانذ ښاي مي كوه دَ هغه دَ زخم دَپارَ بلسان واخله كنه چه
۹ هغه جوړ شي ۹ موږ خو دَ بابل جوړيدل غوښتل مګر ده شفا نه غوښته
تاسو هغه پريږدئ راځئ چه موږ هر يو خپل وطن ته لاړ شو ځكه چه
دَ هغه عدالت آسمان ته ورسيده او تر اوريځو پوري هسك شوه ــ
۱۰ ۱۰ خداوند ځموږ صداقت ويوست راشئ چه موږ په صيحون كښ دَ خداوند
۱۱ الله خپل دَ كار بيان وكړو ۱۱ غشي تيره كاڼئ ډالونه ټينګ ونيسئ خداوند
دَ ماديانو دَ بادشاه روح ولمساوه ځكه چه دَ هغه اراده دَ بابل دَپارَ
ده چه هغه نابود كړي په حقيقت سره دَ خداوند بدل اخستل او دَ دَه
۱۲ دَ هيكل بدل اخستل دا دي ۱۲ دَ بابل په ديوالونو نښان ودروئ څوكئ
مضبوطي كاڼئ پهره داران ودروئ پسوني طياري كاڼئ ځكه چه خداوند
هغه اراده چه كړي وه او هغه څه چه ده دَ بابل دَ اوسيدونكيو په باب
۱۳ فرمايلي وه پوره ئي كړل ۱۳ اي ته چه په ګڼرو اوبو استوګنه كوي چه خزانې
ني ډيري دي ستا دَ تماميدلو وقت را ورسيده او ستا دَ لوټ كولو اوږ
۱۴ ډک شه ۱۴ خداوند دَ لښكرو په ذات خپل قسم خوړلي دَي چه په حقيقت
سره ما خلق به تاكښ داسي ډک كړم لكه چه ملخان وي او هغوي به په
۱۵ تا بانذ دَ چرخشت ناره وكړي ۱۵ ده زمكه په قدرت خپل جوړه كړي دَه او
جهان ئي پخپل حكمت سره ودرولي دَي او آسمانونه ئي پخپله دانائي
۱۶ غوړولي دي ۱۶ دَي به خپل آواز وكړي نو په آسمانونو كښ دَ اوبو خوړ دَي
او دَ زمكي له سرحدونو ټول بخارونه پورته كوي بريښناوي دَ باران دَپارَ
۱۷ پيدا كوي او باد له خپلو خزانو را وباسي ۱۷ هر يو سړي چه بيعقل او
حيوان غوندِ دَي هر يو زرګر دَ تراشلي صورت په سبب شرمنده كيږي
ځكه چه دَ هغه ويلي كړي صورت دروغژن دَي او په هغوي كښ ساه
۱۸ نشته ۱۸ هغه بطلان دِي دَ ګمراهيو كاريګري هركاه چه دَ هغو
۱۹ تحقيقات وشي نو به دوي نيست او نابود كړي شي ۱۹ دَ يعقوب
بخره دَ هغو په دود نه ده ځكه چه هغه دَ ټولو څيزونو خالق دَي

۲۰ او اسرائیل دَده دَ میراث امسا دَه دَده نوم خداوند دَ فوځونو دَی ۲۰ ته
ځما دَجنګ تبرزین او دَجنګ وسله او په تا سره زه قومونه ماتوم او په تا
۲۱ سره بادشاهتونه نیست کوم ۲۱ په تا سره زه آسونه او سواره ماتوم او په تا
۲۲ سره ګاډئ او سوار ئي ټوکړې کوم ۲۲ په تا سره میره او ارتینه ماتوم
۲۳ په تا سره زاړه او ځوانان ماتوم او په تا سره هلکان او جنئ ماتوم ۲۳ او
په تا سره شپانه او رمې ئي ماتوم او په تا سره دهقانان او جوړې ئي ماتوم
۲۴ او په تا سره سرداران او حاکمان ماتوم ۲۴ او زه به بابل ته او دَ کسدیانو
ټول اوسېدونکیو ته دَ هغه ټول شرارت چه هغوي په صیون ستاسو
۲۵ په سترګو کښ کړې دَي عوض ورکړم خداوند دَي ۲۵ خداوند وائي
اې هلاکونکي غره چه ټوله زمکه هلاکونکې یې زه ستا مخالف یم او زه
به خپل لاس په تا باندِ اوږد کړم او تا به له ګټوونو سره ورغړوم او
۲۶ سوزېدلی غر به دِ کړم ۲۶ او هغوي به نه یو کاڼې دَ کُنټ دَپارَ نه یو
کاڼې دَ بنیاد دَپارَ له تا نه یوسِي بلکه ته به تر همیشه پورې ویران
۲۷ یې خداوند وائي ۲۷ تاسي په زمکي باندِ نښان ودروئ دَ غیر قومونو
ټولیو په منځ کښ قرنا ووهئ او غیر قومونه دَ هغه په مخالفت کښ
خاص کاڼئ دَ اراراط او دَ منّي او دَ اشکناز ملکونه په هغه
باندِ راوبولئ سپهسالار دَ هغه په مقابل مقرر کړئ داسي وکړئ چه
دَ آسونو سواره دِ په هغه باندِ په هغه شان سره وخېژي لکه
۲۸ چه زیږ ملخان خېژي ۲۸ قومونه دَ مادیانو له بادشاهانو سره او دَ هغه
دَ حاکمانو سره او دَ هغه دَ نائبانو سره او دَ هغه دَ بادشاهت دَ
۲۹ ټولي زمکي سره تیار کاڼئ ۲۹ او زمکه رپیږي او سره تاوېږي ځکه
چه دَ خداوند ارادې به دَ بابل په مخالفت کښ ټینګي اوسي چه دَ
۳۰ بابل زمکه ویرانه کړي چه یو اوسېدونکی په کښ پاتي نه شي ۳۰ دَ بابل
بهادران له جنګ ودرېدلي دِي په قلاو کښ ناست زور ئي کم شه
هغوي دَ ښځو په دود شول دَ هغو مېشتوګنه ئي سیځلې دَه دَ هغو اړمونه

مات شول ٣١ هرکاره به له هرکاره سره ملیا کیدلو ته او قاصد به ٣١
قاصد ته دَ ملیا کیدلو دَپارَ وزغلي چه دَ بابَل بادشاه خبر ورکړي
چه ستا ښهر سر تر سره ونیو شه ٣٢ او گذرونه واخستل شول او ٣٢
درمي ئي په اور سیځلي دِي او جنګي ځوانان پریشان شول ٣٣ ځکه چه ٣٣
خداوند دَ لښکرو دَ اسرائیل الله داسي وايي چه دَ بابَل لور دَ درمند
په دود دَه چه دَ ښکمنډلو وقت ئي راغي لکوټي درنګ دَي چه په هغي
به دَ لو وقت راشي ٣٤ دَ بابَل بادشاه نبوکدرضر خوړلي يم او هغه زه ٣٤
میده کړي یم هغه زه تش لوښي کړم دَ نهنګ په شان ئي ونغړلم
هغه خپله گیډه ځما له نعمتونو ډکه کړه هغه زه ویستلم ٣٥ دَ صیحون ٣٥
اوسیدونکي به ووايي چه هغه ظلم چه په ما او ځما په خلقو باندِ
وشه په بابَل دِ وشي او اورشلیم به ووايي چه دَ کسدیان په اوسیدونکیو
دِ ځما وینې وِي ٣٦ دي دَپارَ خداوند داسي وايي گوره زه به ستا ٣٦
حجّت ثابت کړم او ستا بدله به واخلم او دَ هغه درياب به وچ کړم
او دَ هغه چیني به وچي کړم ٣٧ او بابَل به تودي شي او دَ گیدړو ٣٧
استوګنه او دَ حیراني او دَ شپیلکي سبب به شي او هیڅوک به نه په
کښ اوسي ٣٨ هغوي به دَ زمريِ غندِ یو ځاي سره غرنبیږي دَ ځوانانو ٣٨
زمریو په دود به غریږي ٣٩ دَ هغوي په گرمي به زه دَ هغوي میلمستیاوي ٣٩
کړم او مست به ئي کړم تا چه هغوي مستي کوي او په مدامي خوب
ووده وِي او ویښ نه شي خداوند وايي ٤٠ زه به هغوي دَ وریو په دود ٤٠
او دَ مړونو په شان دَ بزو سره قصاب خاني ته راکوز کړم ٤١ شیشک ٤١
خله اخستلي شوي دَي هو دَ ټولي زمکي مدحه په یوه وار چپاو
کړي شه بابَل دَ قومونو په منځ کښ ځرنګ ویراني شه ٤٢ په بابَل باندِ ٤٢
سمندر ختلي دَي دي دَ هغه له ډیرو چپونه پټ شه ٤٣ دَ هغه ٤٣
ښهرونه ویجاړ شول هغوي یوه وچه زمکه او صحرا شول داسي زمکه
چه هیڅوک نه په کښ اوسي نه هلته کښ آدمزاد تیریږي ٤٤ ځکه چه ٤٤

زه به په بابل کښ بیل ته سزا ورکړم او هغه څه چه هغه
نغړلي دِي له خولي به ئي را و باسم او قومونه به بیا هغه ته ورروان
نه شِي هو دَ بابل دیوال به پریوزِي ۴۵ اي څما اُمّت له هغه راووزه ۴۵
او له تاسي نه دِ هر یو خپل ځان دَ خداوند له سخت قهرَ خلاص
کاندِ ۴۶ اوچه ستاسو زړه دِ سُست نه شِي او له هغي آوازي نه ۴۶
وویریږئ چه په زمکه کښ به واورولهٔ شِي یوه آوازه به یو کال راشِي
او بیا دویمه آوازه په دویم کال کښ او په ملک کښ به ظلم شِي
او حاکم به له حاکم په خلاف ۴۷ دي دَپارَ گوره هغه ورځي راځي چه ۴۷
زه به دَ بابل له تراشلیو صورتونو بدله واخلم او دَ هغه ټوله زمکه
به و شرمیږي او دَ هغه ټول وژلي به دَ هغه په منځ کښ پریوزِي -
۴۸ هغه وقت به آسمان او زمکه او هرڅه چه په هغي کښ دِي په ۴۸
بابل باندِ به شادیاني وغږوِي ځکه چه لوټونکي به له قطب لوري ور
نه راشِي خداوند وايِي ۴۹ لکه چه بابل دَ اسرائیل وژلي و پرزول ۴۹
هم هسي به په بابل دَ ټولي زمکي وژلي پریوزِي ۵۰ اي له توري ۵۰
خلاصو شویو وراندِ ځئ مه ودریږئ له لري نه خداوند یاد کوئ او دَ اورشلیم
خیال دِ ستاسو په زړونو کښ راشِي ۵۱ مونږ شرمیدلي یُو ځکه چه مونږ ۵۱
ملامت واوریدهٔ شرم مو مخ پټ کړي دي ځکه چه بیګانه دَ خداوند دَ کور
په مقدّسو کښ راکډ شول ۵۲ دي دَپارَ گوره هغه ورځي راځي خداوند ۵۲
وايِي چه زه به دَ هغه تراشلیو صورتونو ته سزا ورکړم او دَ هغه دَ ټول
وطن په منځ به ژوبل شوِي زګیروئ کوِي ۵۳ اګر که بابل به آسمان وخوت او ۵۳
اګر که هغه دَ خپل زور اوچت مکانونه محکم کړي وِي نو هم لوټونکِي به څما
له لورِي په هغه باندِ وخیژِي خداوند وايِي ۵۴ له بابل نه دَ ناري آوازاو ۵۴
دَ لوي هلاکت دَ کسدیانو له زمکي نه راځي ۵۵ ځکه چه خداوند دَ بابل لوټ ۵۵
کوِي او دَ هغه په منځ کښ لوي غوریږ موقوف کوِي دَ هغه چاپي دَ ګڼو
اوبو غُندِ شور کوِي دَ هغه دَ شور آواز راووت ۵۶ دي دَپارَ چه لوټونکي ۵۶

په هغه بانډِ هو په بابل بانډِ راختلي دَي او دَده زوراور خلق نیولي دِي
دَ هغو دَ هر یوه لنده ماتیږِي ځکه چه خداوند بدله اخستونکي الله دَیَ
۵۷ هغه به ضرور بدله واخلِي ۵۷ او زه به دَ هغه سرداران او دَ هغه
دانایان او دَ هغه حاکمان او دَ هغه نائبان او دَ هغه زوراور مست
کړم او په مدامي خوب کښ به اوده وِي او ویښ به نه شِي هغه بادشاه
۵۸ وایِي چه نوم ئي رب دَ فوځونو دَي ۵۸ خداوند دَ لښکرو داسي فرمایِي چه
دَ بابل پلن دیوالونه به سر تر سره ونړول شِي او دَ هغه اوچت
دروازي به په اور وسوزاولي شِي او خلق به بيفائدي خواري کوِي او
قومونه اور دَپارَ او پرِ ستومانه به شِي
۵۹ ۵۹ دا هغه خبره ده چه ارمیاه نبي سرایاه زوي دَ نیریاه زوي
دَ محسیاه ته وکړه هغه وخت چه هغه دَ یهوداه دَ بادشاه صدقیاه
۶۰ سره دَ هغه دَ جلوس په څلورم کال بابل ته ورغي ۶۰ او دغه سرایاه دَ
محلونو سردار وه په دي شان سره ارمیاه دغه ټول آفتونه چه په
بابل رانلونکي وُو په یوه کتاب کښ ولیکل یعني دغه ټولي خبري چه
۶۱ دَ بابل په باب لیکلي دِيْ ۶۱ او ارمیاه سرایاه ته وُوِ چه هرکله چه ته
۶۲ بابل ته راشِي نو خبردار چه دغه خبري ټولي ولولي ۶۲ نو به ته ووایِي
چه اي خداوندَ تا دَدي ځاي دَ پرېکولو په باب فرمایلي دِي داسي
چه هیڅوک به په کښ نه وَ اوسي نه انسان نه حیوان مگر تر همیشه
۶۳ به ویران وِي ۶۳ او داسي به وشِي هرکله چه ته دَدي کتاب لوستل
ختم کړي نو به یو کاڼي ورسره وتړي او دَ فرات په مینځ کښ به ئي
وغورزوي او و به وایِي چه بابل به داسي ډوب شِي او دَ هغه آفت
له لاندِ نه چه زه ئي پرِ راولم بیا به پورته نه شِي او هغوي به
ستړي ستومانه شِي دَ ارمیاه خبري تر دي پوري دِي ❖

## دوپنځوسم باب

۱ ۱ چه صدقیاه بادشاه شه دَ یوویشتو کالونو وُه او یولس کالَ ئي

په اورشلیم کښې بادشاهي وکړه او دَ مور نوم ئې حموطل وه چه دَ لبني
۲ ارمیاه لور وه ۲ او ده دَ هغو ټولو په شان چه یهویقیم کړي وُو دَ
۳ خداوند دَ وړاندِ بدکاري وکړه ۳ او دَ خداوند له غضب نه چه په
اورشلیم او په یهوداه باندِ شوي وه تر دې حده چه ده هغوئ له
خپلې مخې نه شړلي وُو دا وشول چه صدقیاه دَ بابل له بادشاه نه باغي
۴ شه ۴ دَ هغه دَ بادشاهي په نهم کال دَ لسمي میاشتي په لسمه ورځ
داسي وشول چه دَ بابل بادشاه نبوکدرضر له ټول فوځ خپل سره
په اورشلیم باندِ ورغوت او دَ هغه په برابر ئې خیمي ودرولي او دَ
۵ هغه په گردا گرد ئې برجونه جوړ کړل ۵ او دَ صدقیاه بادشاه تر یولسم
۶ کال پوري ښهر گیر شوي وه ۶ او دَ څلورمي میاشتي په نهمه ورځ
په ښهر کښې چه لوږه وه بیحده زیاته شوه داسي چه دَ ملک خلقو
۷ دوډئ نه مونده ۷ نو ښهر مات شه او ټول جنگي ځوانان وتښتیدل
او هغوي دَ شپې په وقت دَ هغي دروازي په لاري چه دَ دوو دیوالونو
په منځ کښې بادشاهي باغ ته نژدې وه له ښهر نه ووتل او کسدیان
۸ له ښهر نه چاپیره وُو مگر هغوي دَ عربه لار ونیوه ۸ لیکن دَ
کسدیانو لښکرې په بادشاه پسي شول او صدقیاه ئې دَ یریحو په میدانونو
۹ کښې لاندِ کړ او دَ ده ټول لښکر ور نه تار په تار شه ۹ نو هغوي
بادشاه ونیو تر ربله پوري دَ حمات په زمکه کښې دَ بابل بادشاه
۱۰ ته ئې راووست او هغه په ده باندِ حکم وکړ ۱۰ او دَ بابل بادشاه
دَ صدقیاه زامن دَ ده دَ سترگو دَ وړاندِ قتل کړل او ټول سرداران
۱۱ دَ یهوداه ئې هم په ربله کښې قتل کړل ۱۱ او دَ صدقیاه سترگې ئې
وویستلي او دَ بابل بادشاه هغه دَ زیړو په ځولانو بند کړ او بابل
ته ئې بوت او دَ هغه دَ مرگ تر وقته پوري ئې په بند کښې لاره
۱۲ ۱۲ دَ پنځمي میاشتي په لسمه تاریخ چه دَ بابل دَ بادشاه نبوکدرضر
نولسم کال وه دَ لښکر سردار نبو زرادان چه دَ بابل دَ بادشاه په حضور

کښې په ولاړ وه اورشلیم ته راغي ۱۳ دَ خداوند کور او دَ بادشاه ۱۳
محل ئې وسوزول او دَ اورشلیم ټول کورونه او دَ غټو سړیو ټول
کورونه ئې په اور وسیزل ۱۴ او دَ کسدیانو ټول لښکر چه دَ لښکر ۱۴
دَ سردار سره وه ټول دیوالونه دَ اورشلیم په هر لوري ونړول ۱۵ او ۱۵
دَ لښکر سردار نبوزرادان ځني محتاجان او باقي خلق چه په ښهر
کښې پاتي وُو او هغه پریوتونيِ چه دَ بابل د بادشاه په لوري پریوتل
او دَ ټولي باقي خلق ئې په بند بوتلل ۱۶ مګر دَ لښکر سردار نبوزرادان ۱۶
ځني دهقانان دَ زمکي پرېښول چه دَ تاکستانونو باغوانيِ وکړي او
کروندي کوي ۱۷ او هغه ستني دَ زېړو چه دَ خداوند په کور کښې ۱۷
وي او کرسئ او دَ زېړو تالاؤ چه دَ خداوند په کور کښې وُو کسدیانو
مات کړل او دَ هغو ټول زېړ ئې بابل ته یوړل ۱۸ او دیګونه او یوسونه ۱۸
اوګلګیرونه او تالونه اوچمچي او ټول لوښي دَ زېړو چه دَ هغه ځاي
دَ خدمت په کارکښې استعمال کیدل بوئي وړل ۱۹ او کاسي او مجمري او ۱۹
تالوته او دیګونه او شمعدانونه اوچمچي او رکیبي ټول چه دَ زرو وُو په
زروکښې ټول چه دَ سپینو وُو په سپینو کښې دَ لښکرو سردار یوړل
۲۰ دوه ستني یو تالاؤ او دولس دَ زېړو غوایان چه تر کرسیو دَ لاندِ وُو ۲۰
چه سلیمان بادشاه دَ خداوند دَ کور دَ پارَ جوړي کړي وُو دَ دغو
لوښیو زېړ بي توله وُو ۲۱ دا ستني چه وي دَ هغو نه یوه ستنه ۲۱
اتلس هتي اوچته او دولس هتي مزِي ئې په ګرداګرد وه او
څلور ګوتي غوټه وه دغه تشه وه ۲۲ او په هغي باندي دَ پاسَ دَ ۲۲
زېړو یو چنتيَ وه او هغه چنتيَ پنځه هتي اوچت وه به هغه
چنتيِ باندِ ګرداګرد دَ زېړو جالونه او دَ انارو غوټيِ جوړي وي او
دویمه ستني او انار دَ هغي په موافق وي ۲۳ او دَ څلورو خواؤ ۲۳
مخ شپږ نوي انار وُو او ټول انار په جالیو باندِ دَ هغه په
ګرداګرد یو سل وو

۲۴ ۲۴ او دَ لښکرو سردار سرایاه سردار کاهن او صفنیاه دویم
۲۵ کاهن او دري دروانچیان ونیول ۲۵ او یو خواجه چه سپهسالار
وه او دَ بادشاه له مخ لیدنکو اوه سړي چه په ښهر کښ وموندل
شول او دَ لښکر دَ سردار منشي چه دَ بادشاهت خلق به ئي جمع
کول او دَ هغه دَ زمکي خلق شپیته سړي چه په ښهر کښ موندلي
۲۶ وُو وئي نیول ۲۶ او دَ لښکر سردار نبوزرادان هغوي ونیول په
۲۷ ربله کښ دَ بابل دَ بادشاه وحضور ته وروستل ۲۷ او دَ بابل
بادشاه هغوي دَ حمات دَ زمکي په ربله کښ ووهل قتل ئي
۲۸ کړل هسي یهوداه ئي د دوي له زمکي په بند بیولي شه ۲۸ دا
هغه خلق دِي چه نبوکدرضر په بند بوتلل په اووم کال کښ دري
۲۹ زره درویشت یهودیان ۲۹ دَ نبوکدرضر په اتلسم کال کښ له اورشلیم
۳۰ نه اته سوه دودیرش تنه په بند بوتلل ۳۰ دَ نبوکدرضر په درویشتم
کال کښ دَ لښکر سردار نبوزرادان اوه سوه پنځه‌څلویښت تنه
له یهودیانو ونیول بوئي تلل ټول کسان څلور زره شپږ سوه وُو
۳۱ ۳۱ دَ یهوداه دَ بادشاه دَ یهویکین دَ بندیواني په پنځه دیرشم
کال دَ دولسمي میاشتي په پنځه وبشتمه تاریخ داسي وشول چه دَ
بابل بادشاه اویل مرودک دَ خپل جلوس په وړمبي کال کښ دَ
یهوداه بادشاه یهویکین ئي سرفراز کړ او له بندیخاني راویوست
۳۲ ۳۲ او دَ میني خبري ئي ورسره کولي او دَده تخت ئي دَ هغو
۳۳ بادشاهانو له تختونو چه په بابل کښ ورسره وُو اوچت کړ ۳۳ او
دَده دَ بندیخاني جامي ئي بدلي کړي او ده ټول عمر په هره ورځ دَ
۳۴ هغه په حضور ډوډئ خوړله ۳۴ او دَده وظیفه برابره وظیفه ورکولي
شوه دَ هغه دَ مړیدو تر ورځي پوري ټول عمر دَ بابل دَ بادشاه
له لوري و هغه ته بخره *

# وِير دَ ارمياه نبِي

## اول باب

۱ هغه بسېي ښارنګ يواځي کښيناسته
چه له خلقو ډکه وه
هغه دَ کونډې په دود شوه
هغه چه دَ قومونو په منځ کښ بزرګه
اودَ صوبو په منځ کښ شاهزادګۍ
وه قلنګ ورکونکۍ شوله
۲ هغه دَ شپې په ورت ورت ژاړي
او اوښکي ئې په بارخوګانو بهيږي
۳ دَ دي له يارانو هيڅوک نشته چه
دي ته تسلّي ورکړي
دَ دي ټولو دوستانو له دي سره
بيوفائي وکړه
هغوي دَ دي دښمنان شول
دَ هغه تنګي او دَ سخت خدمت په
سبب يهوداه په بند لاړه شوه
هغه دَ غير قومونو په منځ کښ اوسي
هغه آرام نه مومي
هغوي ټولو چه په دي پسي شوي
وُو دَ تنګسياؤ په منځ کښ ئې ونيوه
۴ دَ صيحون لاري وِير کوي څکه چه
هيڅوک مقرّرو عيدونو ته نه ورځي
دَ هغي ټولي دروازي ويراني دِي دَ
هغي کاهنان ساړه اسوېلي کوي
دَ هغي جنکۍ په عذاب دِي او هغه
پخپله په تلخي کښ دَه
۵ دَ هغي مخالفان سر شول او دښمنان
ئې کامياب دِي
څکه چه خداوند دَدي دَ تقصيرونو
دَ کثرت په سبب تنګه کړي دَه
دَ هغي اولاد دَ دښمن دَ وړاندِ
په بند لاړ
۶ او دَ هغي ټول رونق دَ صيحون له
لور نه لاړ شه
دَ هغي شاهزادګان دَ هغو هوسيو
په دود دِي چه څراګاه نه مومِي
او دَ ښکاريانو له مخ نه بي طاقته
شوِي درومي
۷ اورشليم دَ خپل رنځ او دَ آوارګي
ورځي يادي کوِي
دَ هغي خوشنما څيزونه چه په
قديمو ورځو کښ وُو چه دَده خلق
دَ دښمن په قبضي کښ پريوتل
او هيڅوک ئې مددګار نه وه

دښمنانو ئي دغه ليدلي دِي دَده
په هلاکيدلو پوري ټوقي کولي
۸ اورشليم لويه ګناه کړي ده دي دَپارَ
دا نفرتي شوه
هغوي ټول چه دي ته ئي عزت
ورکاوه دَدي سپکه کوِي دي دَپارَ
چه هغوي دَدي شرم وليد
هو دا هم اسويلي کوِي او پښته ګرزِي
۹ دَ هغي ګندګي دَ هغي په لمن کښ
وه هغه خپل آخر نه يادوِي
دي دَپارَ هغه په عجيبه طور سره
کوزه کړي شوه دَ هغي هيڅوک تسلِي
ورکونکي نه وه
اي خداوندَ ځما په تنګي نظر وکړه
ځکه چه دښمن خپله لوئي کړي ده
۱۰ دښمن دَدي په ټولو پسنديده
څيزونو خپل لاس اوږد کړي دَي
هغه ښځېله هم ليدلي ده چه غير
قومونه دَدي په مقدّس کښ داخل
شول
چه دَ هغو په باب تا فرمايلي دِي
چه دوي دِ ستا په جماعت شامل
نه شِي
۱۱ دَ هغه ټول خلق آهونه کوِي او
ډوډيِ غواړي

هغوي خپل ټول ښائسته څيزونه
ورکړل تا چه دَخپل ځان دَ تازه کولو
دَپارَ خوراک مومي
اي خداوندَ وګوره او غور وکړه
ځکه چه زه ذليل شوي يم
۱۲ اي ټولو لاري تيريدونکو ستاسي
په نزد دا هيڅ نه دَه څه ؟
ګوريِ او نظر کوئِ که کوم غم ځما
دَغم په شان وِي چه په ما بانديِ
پريوتي دَي
چه هغه خداوند دَخپل سخت
غضب په ورځ کښ زه پري زورلي
يم
۱۳ له پاس نه ځما په هډوکيو کښ اور
استولي دَي او هغه په هغو کښ
غلبه کوِي
هغه ځما دَ پښو دَپارَ دام وغوړاوه
هغه زه پستنه وګرزولم
زه ئي ويران کړم او ټوله ورځ بيطاقته
۱۴ ځما دَ تقصيرونو جغ دَده له لاس
نه تړلي شوي دَي
دَ هغه غوړنديِ غوټي ماته
را په غاړي شول ده ځما زور ظائع
کړي دَي
خاوند زه دَ هغو لاسو ته ورکړي

یم چه دَ هغو نه پورته کیدلي نه
شم
۱۵ خاوند زما ټول پهلوانان زما په
منځ کښې ناهیڅ کړي دِي
ده زما په خلاف یو جمعیت را بللی
دَی چه زما ځوانان و دربي
خاوند دَ یهوداه پیغله لور لکه چه
په چرخښت کښې پایماله کړي دَه
۱۶ له دغو سببونو زه ژاړم زما سترګې
په اوبه بهیږي
ځکه چه تسلي کونکي چه زما ځان
به تازه کړي له ما نه لري دَي
زما هلکان پراګنده دِي ځکه چه
دښمن غالب شوي دَي
۱۷ صیحون دواړه لاسونه خپل اوږده
کړي دَ ده تسلي ورکوونکي هیڅوک
نشته
دَ یعقوب په حق کښې خداوند حکم
کړي دَي چه دَ ده چاپیره خلق به
دَ ده دښمن وِي
اورشلیم دَ هغوي په منځ کښې لکه
نجسه دَه
۱۸ خداوند صادق دَی ځکه چه ما
دَ ده له حکم نه سرکښي وکړه
اي ټولو خلقو واورئ که نه او زما
غم ته نظر وکړئ
زما پیغلې او زما ځوانان په بند
لاړل
۱۹ ما خپل عاشقان را وبلل لیکن
هغوي زه و تکلم
زما کاهنانو او زما سپین ږیرو په
ښهر کښې روح پریښود
دَ خپل ځان تازه کولو دَپارَ خوراک
وغوښتل
۲۰ ګوره اي خداونده زه په تنګ یم
زما لړمون ایشي
زما زړه په ما کښې ګردش کوي ځکه
چه ما په سختي سره سرکښي کړي دَه
باهر توره بي کَسه کوي او په کور
کښې لکه مرګ
۲۱ هغوي زما آهونه کول واوریدل
زما تسلي کونکي هیڅوک نشته
زما ټولو دښمنانو زما غم واوریده
هغوي خوشحال دِي چه تا کړي دِي
ته به هغه ورځ راولې چه منادي
دِي کړي دَه او هغوي به زما په
دود شي
۲۲ دَ هغوي ټولي شرارت به ستا په
حضور درشي
او لکه چه تا زما دَ ټولو تقصیرونو

په سبب له ما سره کړي دِي هم
هسي له هغوي سره وکړه
څکه چه څما آهونه ډير دِي او زړه
مِ بيخوده دَي ٭

## دويم باب

۱ څنګه خاوند دَ صيحون لور دَ خپل
قهر تو اوريځي دَ لاندي پټه کړي
دَه
ده دَ اسرائيل ښائست پاس له
آسمانَ په زمکه باندِ وويشت
او دَ خپل قهر په ورځ ئي دَ خپلو
پښو ږدلو کرسي ياده نه کړه
۲ خاوند ټول مکانونه دَ يعقوب
نغرلي دِي او رحم ئي کړي نه دَي
ده پخپل قهر کښ دَ يهوداه دَ لوڼړو
قلاوي نړولي دَي
هغه له خاورو سره برابري کړي دَه
بادشاهت او دَ هغه شاهزادګان
ناپاک کړل
۳ ده پخپل سخت غضب سره دَ
اسرائيل هر يو ښکر پريکړي دَي
دَ دښمن له وړاندِ نه خپل ښي لاس
په وروستو څکولي دَي
ده لمبي وهونکي اور چه په څلور
لورِي هرڅه خوري په يعقوب بل
کړي دَي
۴ ده دَ دښمن په دود خپله لينده وڅکولي
دَه: ده خپل ښي لاس دَ دښمن
په دود ودرولي دَي
ټول چه په سترګو خوشنما وُو وژلي
ئي دِي
او دَ صيحون دَ لور په کيږدئِ کښ
ده خپل قهر دَ اور په دود بل کړ
۵ خاوند دَ دښمن په شان شوي دَي
ده اسرائيل نغرلي دي
دَ ده ټول محلّونه ئي نغرلي دِي
دَ هغه ټولي قلاوي ئي نړولي دِي
او دَ يهوداه په لور وِير او ژړا ئي ډير
زيات کړي دِي
۶ ده خپله جونګړه لکه چه له باغه
شوکولي دَه
ده دَ هغه دَ ټولي مکان نړولي دَي
خداوند په صيحون کښ مقدّس عيد
او سبّت هير کړي دِي
او دَ خپل قهر په جوش کښ بادشاه
او کاهن سپک کړي دِي
۷ خاوند خپل مذبح رد کړي دَي له
خپل مقدّس نه نفرت کړي دَي
دَ هغو دَ محلّونه ديوالونه ئي دَ دښمن
و لاس ته سپارلي دي

هغوي دَ خداوند په کور کښې داسې
شور ولګاوه لکه چه دَ مقدّس
عید په ورځ کښې به کیده
۸ خداوند دَ صیحون دَ لور دَ دیوال
نړولو نیّت کړې دَی
ده یوه مزَې وشکوه او له خرابولو
ئې خپل لاس راګرزولې نه دَی
ده باره او دیوال غمجن کړي دِي هغوي
یو ځای وِیر سره کوِي
۹ دَ هغه دروازي په زمکه کښې دربلي
دِي
ده دَ هغه ارمونه خراب او ټکړي
ټکړي کړي دِي
دَ هغه بادشاهان او شاهزادګان
دَ غیرِ قومونو په منځ کښې دِي چه
هلته توریت نشته
دَ هغه نبیان هم دَ خداوند له
لوري رؤیا نه مومِي
۱۰ دَ صیحون دَ لور سپین بږیري په زمکه
کښېني او چُپ اوسِي
هغوي پخپلو سرونو خاوري باد ولې
دِي پخپلو ملاؤ شړئُ تړلي دِي
دَ اورشلیم پېغلي خپل سرونه تر
زمکي پوري کوز کوِي
۱۱ ځما سترګي له اوښکو ضعیفي کیږي
ځما کلمي ایشي
ځما ینه په زمکه توي شوه په سبب
دَ هلاکت دَ ځما قوم دَ لور ځکه چه
هلکان او يې خوړونکي بچي دَ ښهر
په کوڅو کښې بیهوښَ کیږي
۱۲ هغوي خپلو میندو ته وايي چه
ډوډيِ او شراب چري دِي
هغه وقت چه دوي دَ زخمیانو په
دود دَ ښهر دَ کوڅو په منځ کښې
بیهوښَ کیږي
او هغه وقت چه دَ دوي ساوي دَ خپلو
میندو په غیږو کښې توئیږي
۱۳ کوم ځیز به تا باندِ شاهد کړم زه
تا له څه سره مشابه کړم اي دَ
اورشلیم لوري
له څه سره دِ برابره کړم تاچه زه تاسي
ته تسلي درکړم اي دَ صیحون پېغلي لوري
ځکه چه ستا رخنه دَ سمندر په
دود لویه دَه څوک ستا شفا کولي شِي
۱۴ ستا نبیانو ستا دَپارَ پوچي او باطلي
رؤیاوي لیدلي دي
او ستا شرارت ئې په تا باندِ ظاهر
کړي نه دَي تاچه ستا قید راوګرزوِي
بلکه باطله وحیه او ستا دَ خارج
کیدلو سببونه ئې ستا دَپارَ ولیدل

۱۵ ټول لاري تلونکي ستا دَپارَه تاړِي
وهِي
او شپيلکِي کوِي دَ اورشليم لور ته سر
خوځوِي
چه دا هم هغه ښسي دَه چه په
ښائسته کښ کامله او دَ ټول جهان
خوشحالِي بللي شوه
۱۶ ستا ټول دښمنان په تا باندِ خولي
چيټکوِي
هغوي شپيلکِي کوِي او غاښونه کړچوِي
او وائِي چه موږ هغه نغرولي ده
بي شک دا هغه ورځ دَه چه موږ ئي
په انتظار کښ وُو موږ موندلي دَه
موږ ليدلي دَه
۱۷ خداوند لکه چه نيت کړي وُه هم
هسي ئي کړي دِي
ده خپل کلام چه په وړاندنيو ورځو
کښ ئي حکم کړي وُه پوره کړي دَي
ده نړاولي دَي او زړه سوي ئي کړي
نه دَي
ده ستا دښمنان په تا باندِ خوشحال
کړي دِي
ده ستا دَ مخالفانو ښکر اوچت کړي دَي
۱۸ دَ هغوي زړه خاوند ته فرياد وکړ
اي دَ صيحون دَ لور ديواله دَ رود
په دود دِ شپه او ورځ اوښکي بهوه
ته خپل ځان ته آرام مه ورکوه او
ستا دَ سترګو کسي دِ سوکه نه شي
۱۹ پورته شه او په شپي ناري کوه دَ
شومي په شروع کښ
خپل زړه دَ خاوند په حضور دَ اوبو
په دود توي کړه
ته دَ خپلو بچيو دَ ځان دَپارَ دَده په
لوري لاس پورته کړه
چه دَ هري کوڅي په سر باندِ دَ لوږي
په سبب بي هوش دِي
۲۰ اى خداوندَ وګوره او نظر کوه چه
دا دِ له چا سره کړي دِي
ګوره چه ښځي به خپله ميوه خوري
هغه هلکان چه په لاسونو زنګيږي
څه ؟
کاهن او نبي به په مقدّس کښ
وژلل کيږي څه ؟
۲۱ ځوانان او زاړه په کوڅو کښ په خاورو
پراته دِي
ځما پيغلي او ځما ځوانان په تورو
پريوتلي شول
تا دَ خپل قهر په ورځ هغوي مړه
کړي دِي تا قتل کړي دي او زړه
سوي دِ کړي نه دَي

۲۲ تا هولونه ځما په ګرداګرد داسي رابللي
دِي لکه چه دَ مقدّس عید په ورځ
او دَ خداوند دَ قهر په ورځ هیڅوک
نه خلاص شول نه پاتي شول
هغوي چه ما په خپلي په لاسونو و
زنګول او وَ مِ پالل ځما دښمن
قتل کړي دِي ٭

## دریم باب

۱ زه هغه سړي یم چه دَ هغه دَ قهر
له لوړ مِ تنګي ولیدله
زه ئي بیولي یم او تاریکي ته ئي ور
وستلم په رڼا کښ نه
۲ په یقین سره هغه وار په وارخپل
لاس وګرزوي په ما باندِ ټوله ورځ
۴ ده ځما غوښي اوڅرمن زړي کړي دِي
ځما هډونه ئي ریزمریز کړي دِي
۵ ده ځما په مخالفت کښ عمارت کړي
دِي او په آفیم او په محنت سره
ئي ګېر کړلم
۶ ده زه دَ هغو مړیو په دود چه
له مودي نه مړه دِي په تاریکو
مکانونو کښ اوسولي یم
۷ ده ځما په ګرداګرد داسي جار ترلي
دَي چه زه ورنه وتلي نه شم ده ځما
زنځیر دروند جوړ کړي دي
۸ هو هرکله چه ناري او سوري وهم
نو دَي مِ دُعا بنده کړي
۹ دي په تراشلیو کانړیو ځما لار
بنده کړه ده ځما لاري پیچداري کړي
دِي
۱۰ دي ځما دَپارَ داسي شه لکه یږ
چه په ځوکښ غلي وِي اولکه ببر
زمري چه پټ په کمینګاه کښ
۱۱ ده ځما لاري سره ګرزولي دِي
او زه ئي ریزمریز خرلي یم زه ئي
بیکس پرینبودلي یم
۱۲ ده لینده ځکولي دَه او زه دَ خپل
غشي مُخه کړي یم
۱۳ ده دَ خپل ترکش غشي ځما په
ګُردو کښ ننی یستلي دِي
۱۴ زه دَ خپلو خلقو دَ وړاندي خندا
شولم او ټوله ورځ دَ هغو سرود
یم
۱۵ ده زه ترخندي پوري له تلخۍ ډک
کړي یم او په مستیاري ئي موړ
کړي یم
۱۶ ده په سنګریزو ځما غاښونه مات
کړي دِي زه ئي په ایرو کښ پټ
کړي یم
۱۷ تا ځما ځان له سلامتي نه لرې کړي

دَي ما بهبودِي هيره کړه

١٨ او ما وويل چه ځما طاقت او ځما
اسره له خداوند نه برباد شول

١٩ ځما رنځ او عذاب ياد لره هغه مستيارِي
او افيم

٢٠ ځما روح تر اوسه دَ هغو ياد کوِي
او په ما کښ ټيټه کيږِي

٢١ دغه لره زه په خپل زړه کښ ګرزوم
په دي سبب ځما اميد دَي

٢٢ دغه دَ خداوند له زړه سويو دَي چه
مونږ نيست نه شولو دي دَپارَ چه
دده رحمتونه: نه تمام کيږِي

٢٣ هغه هرصباح لره نوي تازه دَي ستا
امانتدارِي عظيمه دَه

٢٤ ځما ځان واِيي چه خداوند ځما حصّه
دَي ځکه زه په ده باندِ اميد لرم

٢٥ خداوند له هغو سره نيک دَي چه
ده منتظر دي هغه ځان لره چه
دي غوارِي

٢٦ ښه دَي چه انسان دَ خداوند دَ
نجات اميدوار اوسِي او په صبر
سره دده انتظار کوِي

٢٧ دَ ځوان په دي کښ ښه دَه چه دَ
خپلي ځوانِي په ورځو کښ جغ پورته
کړِي

٢٨ دي دِ يواځي کښيني اوچپ دِ اوسِي
ځکه چه هم هغه په دغه باندي
ايښي دَي

٢٩ چه دَي دِ خپل مخ په خاورو کيږدِي
چه ګنزِه چه څه اميد وِي

چه دَي دِ خپل وټ و هغه ته ورکړِي

٣٠ چه دده وهنکي وِي دي دِ له ملامتيا
نه ډک مور اوسِي

٣١ ځکه چه خداوند به تر ابدالآبادَ
پورِي شړل و نه کړِي

٣٢ اګر که دَي ربړ ورکوِي په دي هم دَ
خپلو زړه سويو دَ فراوانِي په موافق
به رحمت وکړِي

٣٣ ځکه چه دَي په خپل زړه سره
بنِي آدم نه تنګوِي او نه عذاب
ورکوِي

٣٤ دَ زمکي ټول قيديان پايمال کانړِ

٣٥ دَ الله تعالیٰ په حضور دَ چاحق رد

٣٦ کړِي/دَ چا مقدمه واړوِي خاوند ئې
نه منظوروِي

٣٧ څوک دَي چه واِيي او هغه کيږِي
هغه وقت چه خداوند دَ هغه حکم
و نه کړِي

٣٨ ګنزِه دَ الله تعالیٰ له خولي نه ښه او
بد نه وزِي څه ؟

۳۹ ځله دِ سړي چه ژوندي دَي وجرېږي
يو سړي دَ خپلو ګناهونو دَ سزا
په سبب
۴۰ راځئ چه مونږ ولټوو او خپلي
لاري وآزمايو او دَ خداوند په لوري
وګرزو
۴۱ مونږ خپل زړه له لاسونو سره دَ
خداى دَ وړاندِ په آسمانونو کښ
پورته کړو
۴۲ مونږ تقصير کړي دَي او باغي توب
مو کړي دَي تا معاف کړي نه يُو
۴۳ تا خپل ځان تر قهر لاندِ پټ کړي
کړي دَي راپسي شولي تا مونږ قتل
کړي يُو او زړه سوي دِ را باندِ کړي
نه دَي
۴۴ تا خپل ځان په اوريځو کښ پټ
کړي دَي چه دَ مونږ دُعا ورنه تيري
نه شي
۴۵ تا مونږ دَ ټولو په منځ کښ دَ خاشو
او دَ ګندګئ په دود کړي يُو
۴۶ دَ مونږ ټولو دښمنانو ومونږ ته خولي
چينګي کړي دِي
۴۷ په مونږ باندِ ترس او دغل پرېوتل
وېراني او خرابي
۴۸ ځما دَ قوم د لور دَ هلاکت په سببَ
ځما سترګي دَ اوبو چيني بهيږي
۴۹ ځما سترګي تخېږي او نه تم کيږي بي
فراغت
۵۰ تر هغه پوري چه خداوند له آسمانَ
کوز نظر وکړي او وويني
۵۱ ځما سترګي دَ ښهر دَ ټولو لوڼو
دَپارَ ځما په ځان کړي
۵۲ هغوي چه بي سببَ ځما دښمن وُو
زه ئي دَ مرغيو په دود په زور سره
ښکار کړي يم
۵۳ هغوي ځما ژوند لره په زندان کښ
پريکړي دَي او په ما باندِ ئي کاڼي
واچاوه
۵۴ ځما په سر اوبه تيري شوي ما وويل
چه زه پريکړي شولم
۵۵ اي خداوندَ ما ستا نوم له ژور زندان
نه وباله
۵۶ تا ځما آواز واوريدل ځما له اسويلي
کولو او ځما له فرياد نه خپل غوږونه
مه پټوه
۵۷ نه په هغي ورځي چه تا ته مِ په هغي
کښ ناري وکړي نژدي راغلي او و
دِ ويل چه مه ويريږه
۵۸ اي خاوندَ تا ځما دَ زړه جګړې ثابت
کړل او ځما روح ته دِ خلاصون

بخښلي دَي
۵۹ اي خداوندَ تا ځما مظلومي وليده
نه ځما مقدّمه لنده کړه
۶۰ تا دَ هغو ټولو بغض او دَ هغو ټولي
انديښني چه دوي ځما په مخالفت
کښي وکړي ليدلي دِي
۶۱ اي خداوندَ تا دَ هغو ملامتيِ او دَ
هغو ټول فکرونه چه هغوي ځما په
خلاف وکړل اوريدلِي دِي
۶۲ او دَ هغوي شونډې هم چه په ما
وختل او دَ هغو دَ جړکو حال چه
دوي ئي ټوله ورځ په ما بانْدِ کوي
۶۳ ته دَ هغو کښيناستل او دَ هغوي
پورته کيدل ووينه زه دَ هغو
سرود يم
۶۴ اي خداوندَ ته هغوي ته دَ هغوي
دَ لاسونو دَ کار په موافق هغوي
ته بدله ورکړه
۶۵ هغوي ته دَ زړه سختِي ورکړه په
هغوي دِ ستا لعنت
۶۶ ته به په قهر سره ورپسي شي او
دَ خداوند دَ آسمانونو له لاندِ به
ئي نابود کړي +

## څلورم باب

۱ سره زر څرنګ کوټه شول سوچه کړي
خالص زر څرنګ بدل شول
دَ بيتِ ايل مقدس کاڼِي دَ هري
يوي کوڅي په سر بانْدِ غورزولِي
شوِي دِي
۲ دَ صيحون اشراف زامن چه دَ سوچه
زرو سره مشابه وُو
څرنګ دَ کلال دَ لاسونو دَ جوړو
شويو له خاورينو کوزي په دود
شول
۳ کيدړِ هم تِي وباسِي خپلو زامنو
ته پِيِ ورکوِي
ځما دَ قوم لور دَ بيابان دَ شترمرغانو
په دود تُنده شوه
۴ دَ پِيِ خوړونکيو بچيو ژبه دَ تندي
په سبب په تالو پوري نښتي دَه
تنکي هلکان ډوډيِ غوارِي ليکن
دَ هغو دَپارَ ئي هيڅوک نه ماتوِي
۵ هغوي چه مزه دار خوراکونه به ئي
خوړل په کوڅو کښ ورک (پراته) دِي
هغوي چه قرمزِي پوشاکونه اغوستِي
وُو غوجلي به غيږ کښ اخلِي
۶ خکه چه ځما دَ قوم دَ لور دَ بدکارِي
دَ سدوم دَ ګناه نه زياته وه
چه په يوه آن کښ واوړاولي شوه
او چه هيڅ لاس په هغي کيښودلي نه وُ

٧ دَ هغې ټوله ناظران له واورې صاف
او له پيو سپين وُو
دَ هغو بدن له لالو هم زيات سره
وُو دَ هغو شکل دَ نيلم په دود وه
٨ اوس دَ هغو څهرې له سکرو تورې
دِي دوئ په کوڅو کښ پېژاندلې
نه شِي
دَ هغوي څرمنې له هډوکيو سره
نښتې هغه دَ لرګي په دود وچ شه
٩ هغوي چه په توري قتل کيږي له
هغو نه بهتر دِي چه په لوږې
مرِي
څکه چه دَ دغو څانونه دَ پټي دَ
ميوې له حاجت خيرې شول او توئيږي
١٠ دَ رحم دِلو ښځو لاسونو خپل زامن
پاخه کړل
څما دَ قوم دَ لور په هلاکت کښ هم
هغوي دَ دوي خوراک شول
١١ خداوند خپل غضب پوره کړي دَي
خپل تند قهر ئې توي کړي دَي
ده په صيون کښ يو اور بل کړي دَي
او دغه هغه بنيادونه خوړلي دَي
١٢ دَ زمکې بادشاهانو او دَ دنيا ټولو
اوسيدونکيو باور نه کاوه
چه کينه کښان او دښمنان به دَ اورشليم
په دروازو راننوزي
١٣ دَ هغه دَ نبيانو دَ ګناهونو او دَ
هغه دَ کاهنانو دَ بديو په سبب
چه دَده په منځ کښ ئې دَ صادقانو
وينې وبهولې دا وشول
١۴ هغوي رانده شوي په کوڅو کښ
تيريدل هغوي په وينو لړلي دِي
داسې چه خلقو دَ دوي جامې مسه
کولې نه شوې
١٥ دوي هغوي ته ورناري کړې چه
لرې شئ اې ناپاکو لرې شئ لرې شئ
مه مو مسه کوئ
هغوي چه وتښتيدل او آواره ګرزيدل
نو دَ قومونو په منځ کښ ويل کيدل
چه هغوي به بيا د مقام ونه کړي
١٦ دَ خداوند څهرې هغوي وويشل
دَي به بيا په هغوي نظر ونه کړي
هغوي دَ کاهنانو دَ سرِي توب تعظيم
ونه کړ او دَ سپين ږيرو عزت ونه کړه
١٧ څمونږ سترګې دَ عبثې مددګارې په
انتظارې سره فنا شولې
مونږ په خپلو نظرو سره دَ هغه
قوم منتظر شولو چه مونږ خلاصولې
نه شوو
١٨ هغوي مونږ په هر قدم ښکار کولو

تردي حده چه مونږ بچپلو كوڅو
كښ تلي نه شولو
ځمونږ آخر نژدي دي ځمونږ ورځي
پوره شوي ځکه چه د مونږ اجل
را ورسيده
۱۹ ځمونږ په وروستو پسي تلونكي د
آسمان له تجيرانو زيات تيز وُو
هغوي په غرونه باندِ راپسي وُو
هغوي په بيابان كښ مونږ ته پټنكئ
وكړه
۲۰ د مونږ د سپږمو دم مسيحه
يهوه د هغو په ډوغلو كښ نيولي
شوي وه
چه د هغه په باب مو وويل چه
مونږ به د عير قومونو په منځ كښ
د هغه تر سيوري لاندِ گذران كوُو
۲۱ اي د ادوم لوري ته چه د عوض
په زمكي كښ اوسي خوشبه او
خورمه شه
پياله به تر تا هم در ورسيږي ته
به مستبه شي او خپل ځان به برښنه
كړي
۲۲ اي د صيحون لوري ستا د بدكارِي
سزا تمامه شوه
هغه به دِ بيا په بند بو نه زِي
اي د آدوم لوري هغه به ستا د
بدكارِي بدله درنه واخلي
او ستا خطاوي به ظاهره كړي ❖

## پنځم باب

۱ اي خداوندَ هرڅه چه په مونږ
وشول په ياد ئي كړه
متوجّه شه او د موږ په رسوائئ
نظر وكړه
۲ د مونږ ميراث د بيگانهؤ شه د
مونږ كورونه بيگانهؤ لره
۳ مونږ يتيمان شولو بي پلارونو
د مونږ ميدي د كونډو په دود
شوي
۴ مونږ خپلي اوبه هم په بيع مو
څښلي
او لرگي مونږ ته په بيعه سره راځي
۵ د مونږ په غاړو ئي ربړونكي دِي
مونږ ستړي كيږو او آرام نه موو
۶ مونږ د مصريانو او اسوريانو ته
لاس وركړ
تاچه مونږ په ډوډئ ماړه شو
۷ د مونږ پلرونو او نيكونو گناه وكړه
او دوي نشته
او مونږ د هغو د بدكاريو بار
پورته كوُو

٨ په مونږ بانديٰ غلامان حکم کوي
هيڅوک نشته چه مونږ د هغو له
لاسونو خلاص کاندي
٩ مونږ د خپل ژوندون په بازلو سره
ډوډئ حاصله کوو
د هغي توري له ويري چه په بيابان
کښ ده
١٠ د مونږ څرمن د تنور په دود توره
شوه
د قحط د بادِ سموم د تبي په سبب
١١ هغوي په صيحون کښ ښځي
او د يهوداه په ښهرونو کښ پيغلي
جنئ په جبر سره بيعزّته کړلي
١٢ اميران د هغو په يوه لاس ځوړند
شوي وُو
او د سپين‌ږيرو آبرو و نه کړه شوه
١٣ ځوانانو ميچني پورته کړلي
او هلکان تر لرګيو لاندِ پريوتل
١٤ سپين‌ږيري له دروازو موقوف
شول.
او ځوانان له خپلو نغمو کولو

١٥ د مونږ د زړه خوښي لاړه شوه
د مونږ ګډيدل په وير بدل شول
١٦ د مونږ له سر تاج پريووت
هَي هَي په مونږ بانديٰ چه ګناه مو
وکړه
١٧ دي دپارَ ځما زړه ناتوانه شه
د دي خبرو په سبب مِ سترګي تاريکي
شوي
١٨ د صيحون د غره د ويراني په سبب
ګيدړان په هغه کښ ګرزي
١٩ ليکن اي خداوندَ ته تر ابده پوري
کښيني
او ستا تخت پيړئ په پيړئ دي
٢٠ ته مونږ د هميشه دپارَ ولي هيروي
او تر دومره مُدي پوري مو ترک کوي
٢١ اي خداوندَ مونږ ځپل لوري وګرزوه
او مونږ به در و ګرزُو
د مونږ ورځي نوي کړه لکه چه په
قديمي کښ وشول
٢٢ تا بالکل رد کړي يُو
ته له مونږ نه سخت غصّه ناک شوي يي

پښتو شوي له اصلي عبراني ژبي نه په قلم د غلام جلاني لکلي



נביאים

# كلام الله



## نبوت

## يحزقيئل نبي


په مطبع برتش اېنډ فارن
بيبل سوسيتي لندن او پېښور

# EZEKIEL, IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

1895.

# دَ حزقئيل نبي کتاب

## اول باب

۱ آ او دَ دېرشم کال دَ څلورمي مياشتي په پنځمَ داسي وشول چه زه
دَ کبار سيند په غاړي په قيديانو کښې وم آسمانونه پرانتلي شول
۲ او ما رويلي دَ الله وليدلي ۲ دَ مياشتي په پنځمَ چه دَ يهوياکين بادشا
۳ دَ قيد پنځم کال وه ۳ داسي وشول چه دَ الله کلام دَ بوزي کوهن
څوي حزقئيل ته دَ کسديانو په زمکه کښې دَ کبار سيند په غاړه
ورسيد او هلته کښې دَ خداوند لاس په هغه وه
۴ ۴ او ما وکتل او گوره چه دَ شمال له لوري يوه بره بوړکۍ
راغله او يوه لويه اوريځ او له اوره نغښتلي وه او چاپېره تِرِ شعلي
وي او دَ هغي له مېنځ په شان دَ زېړو يوه څهره دَ اور له مېنځ
۵ وځليدله ۵ او دَ هغي له مېنځ شکل دَ څلورو حيوانانو او دا هغه
۶ څهره وه او دَ هغو شکل دَ انسان وه ۶ او دَ هر يو څلور مخونه
او هر يو له دوي نه څلور وزره لرل
۷ ۷ او دَ هغو پښي قائمي پښي وي او دَ پښو تِلي ئي دَ سِخي دَ
۸ پښو تِلي وُو او ځهري ئي په شان دَ صفا کړيو زېړو ځليدي ۸ او
دَ هغو په څلورو طرفونو دَ وزرو لاندِ دَ سړي لاسونه وُو او په
۹ څلورو طرفو ئي مخونه او وزر وُو ۹ او دَ هغو وزر يو له بل سره
پيوسته وُو او په تللو کښې ئي گرځيدل نه وُو بلکه هغوي نېول سم
۱۰ په وړاندِ تلل ۱۰ ليکن شکل دَ څهرو ئي دَ آدم څهره (دَ انسان) او
دَ بل څهره دَ ببر زمري دَ هغو په ښي طرف دَ هغو څلورو يوه څهره
دَ سخوندر دَ هغو په کيڼ لوري دَ هغو څلورو يوه څهره دَ عقاب
۱۱ وه ۱۱ دا دي څهري دَ هغو ليکن دَ هغو وزر پرِ دَپاسَ خواره وُو

دَ هر یوه دوه دَ بل له دووه سره پیوسته وُو او په دوو دوو ئې
۱۲ بدنونه پټ شوِي وُو ۱۲ او له هغوي نه هریو سم په وړاندِ ته چرته
چه روح به ته په هغه لورِي به دوي تلل او په تللو کښ ئې ګرزیدنه
۱۳ نه وه ۱۳ لیکن شکل دَ هغو حیوانانو په مثال دَ څهري دَ اور دَ
لګیدلِي سکاره په دود او دَ لمبي په شان وه هغه دَ هغو حیوانانو
په منځ کښ دي لورِي هغه لورِي ته ځه راتُه او هغه اور نوراني وه
۱۴ او له اور نه بریښنا راوته ۱۴ او هغه حیوانان په دو تلل او بیرته
۱۵ به راګرزیدل لکه چه یوه بریښنا ځلیږِي ۱۵ پس چه ما هغه حیوانان
ولیدل نو څه ګورم چه دَ هغو هر څلورو حیوانانو مخونو څخه یو څرخ په زمکه دَي
۱۶ ۱۶ او دَ هغو څرخونو صورت او کاریګرِي دَ زبرجدو په رنګ ښکاره
شوله او دَ هغو څلورو یو ډول وه او دَ هغو صورت او دَ هغو
۱۷ کاریګرِي داسي وه لکه چه څرخ دَ څرخ په منځ کښ وِي ۱۷ او چه
هغوي به تلل هغوي به په خپلو څلورو طرفو تلل او نه به ستنیدل
۱۸ ۱۸ او دَ هغو حلقي چه وِي داسي اوچتي وي چه ویره ور نه کیده
۱۹ او هغه څلور حلقي ګِرداګِرد له سترګو ډکي وي ۱۹ او چه هغه
حیوانان به تلل څرخونه به هم ورسره تلل او چه هغه حیوانان به
۲۰ له زمکي پورته کیدل څرخونه به هم پورته کیدل ۲۰ او چرته چه به
روح تلونې وه دوي به هم تلل او دَ دوي روح به هم په تلو کښ وه
او څرخونه به ورسره پورته کیدل ځکه چه دَ حیوانانو روح په
۲۱ څرخونو کښ وه ۲۱ او چه هغوي به تلل دغه به تلل او چه هغوي به
ودریدل دغه به ودریدل او چه هغوي به له زمکي پورته کیدل
څرخونه به هم ورسره پورته کیدل ځکه چه په څرخونو کښ دَ
۲۲ حیوانانو روح وه ۲۲ او دَ هغي فضا شکل چه دَ هغو حیوانانو په
سرونو باندِ وه لکه دَ دهشتناک بلور په رنګ وه هغه ئې په
۲۳ سرونو باندِ غوړیدلِي وه ۲۳ او دَ هغي فضا دَ لاندِ دَ هغو وزرونه

سم وُو يو دَ بل په لوري وه او هر يوه دوه په دي خوا او هر يوه
٢٤ دوه په هغي خوا لرل چه په هغوي خپل بدنونه پټ کول ٢٤ او چه
دوي تلل نو ما دَ هغو دَ پرونو آواز واوريده گويا کښ دَ ډيرو اوبو آواز هو
دَ قادر دَ آواز په شان دَ غوغا په دود آواز لکه دَ لښکر آواز وه او چه
٢٥ هغوي به ودريدل نو خپل وزرونه به ئې ځوړندول ٢٥ او هر کله چه
به ودريدل او خپل وزرونه به ئې ځوړند کول نو له هغي فضا نه
٢٦ چه دَ هغو په سرونو وه يو آواز به کيده ٢٦ او له هغي فضا نه دَ پاسَ
چه دَ هغو په سرونو وه دَ تخت شکل وه او دَ هغه مثال دَ نيلم دَ
کاڼي په دود وه او دَ هغه تخت په شکل يو شکل دَ سړي غوندِ
٢٧ دَ هغه دَ پاسَ وه ٢٧ او ما دَ صيقل کړي شويو زيړو رنګ غوندِ
وليد لکه رنګ دَ اور په هغه کښ ګِرداګِرد [١] او دَ هغه دَ ملا نه
تر لاندِ پوري ما دَ اور په شان وليد او دَده په ګِرداګِرد تجلي وي
٢٨ ٢٨ لکه دَ هغي ليندي شکل چه دَ باران په ورځو کښ په اوريځ کښ وي
هم هسي ئې په ګِرداګِرد شکل دَ تجلو وه دَ خداوند دَ جلال هم دا شبيه وه
او په ليدلو سره ئې پړمخ پريوتم او ما دَ يو ويونکي آواز واوريده ❊

## دويم باب

١ آ او هغه راته وويل چه اي آدمزاده په خپلو پښو ودريږه چه زه به
٢ له تا سره خبري وکړم ٢ او چه هغه له ما سره خبري کولي نو په ما
کښ روح ننوت زه ئې په پښو ودرولم چه ما دَ هغه واوريدل
٣ چه راته ئې ويل ٣ نو هغه راته وويل چه اي آدمزاده زه تا دَ
بني اسرائيل وهغو ياغيانو قومونو ته چه له ما نه ګرزيدلي دِي آستوم
٤ هغوي او دَ هغو پلرونه تر ننِ ورځي پوري له ما نه ياغيان دِي ٤ او
هغه هلکان چه تُرش رويه او سخت دله دِي زه تا وراستوم او ته
٥ به هغوي ته ووايي چه خداوند يهوه داسي وايي ٥ نو که هغوي اوري

[١] او د هغه د ملا تر پاسه پوري

اوکه انکار کوِي ځکه چه هغه خو سرکښ کور دَي نو هم دومره خو
٦ به پوه شِي چه يو نبِي دَدوي په مينځ کښ وه ٦ او اي آدمزاده ته له
هغو، نه مه ترسيږه او نه دَ هغوي له خبرو وويرېږه اګرکه له تا سره
جلبنګونه او دَ اغزو په دود دِي او ته دَ لړمانو په منځ کښ اوسي
دَ هغو له خبرو مه ترسيږه او دَ هغو له څهرو مه ډاريږه اګرکه
٧ هغه باغِي کور دَي، نو ته ځما خبري هغوي ته وکړه که اورِي او که
٨ انکار کوِي ځکه چه دوي بيحده باغيان دِي ٨ ليکن ته اي آدمزاده
ته ځما واوره ته دَ هغه سرکښ کور په دود سرکښِي مه کوه خپله
خُله پرانزه او هرڅه چه زه ئِي درکوم وئِ خوره
٩ ٩ او چه ما نظر وکړ نو ګورئِ چه يو لاس ځما په لورِي
غزيدلي دَي او ګورئِ چه په هغه کښ نغښتلي طومار دَي ـ
١٠ ١٠ او هغه ئِ ځما په مخ کښ وغوړاوه او هغه په مخ او په شا
ليکلي شوي وه او په هغي کښ ژړا اوويِر او هَيهاي نوشته وُو ❊

# دريم باب

١ ١ بيا هغه راته وويل چه اي آدمزاده هرڅه چه ته مومي نو وخوره
٢ دا طومار وخوره او لاړ شه دَ بني اسرائيل کور ته ووايه ٢ پس ما
٣ خپله خُله پرانتله او هغه په ما هغه طومار وخوراوه ٣ بيا هغه
راته وويل چه اي آدمزاده ستاکيدړه دِ ئِ وخورِي او ته خپلي کُلمي
پرِ ډکي کړه له دي طوماره چه ما درکړي دَي نو ما هغه وخوړ او ځما
٤ په خولي کښ هغه دَ ګبينه په دود خوږ وه ٤ بيا هغه راته وويل چه
اي آدمزاده راشه دَ اسرائيل کورته ورشه او ځما خبري ورته ووايه
٥ ٥ ځکه چه ته داسي قوم ته چه ژور شوندي او دروند زبانه دَيَ
٦ استولي شوي نه يي بلکه دَ اسرائيل کور ته ٦ او نه هغه ډيرو
قومونو ته چه شوندي ئِ ژوري دِي او ژبي ئِ درني دِي چه ته دَ

هغو په ژبي پوهيدلي نه شي نو که ما ته هغوي ته استولي وي نو
٧ هغوي به دِ آوريدلي وُو ٧ ليکن دَ اسرائيل کور نه غواړي چه ستا
واورِي ځکه چه هغوي نه غواړي چه ځما واورِي ځکه چه ټول کور
٨ دَ اسرائيل سخت تندي او سخت دله دي ٨ گوره ما ستا څهره سخته
کړي دَه په خلاف دَ څهرو دَدوي او ستا تندي مِ دَ هغو دَ تندو په
٩ خلاف سخت کړي دَي ٩ ما ستا تندي دَ الماس په دود دَ بکړي له کاڼي
سخت کړي دَي له هغو نه مه ويريږه او دَ هغوي له څهرو نه مه ترسيږه
١٠ ځکه چه هغه باغي ټبر دَي ١٠ بيا دِهِ راته وُوِ چه اي آدمزاده ځما
ټولي خبري چه زه ئې تاته وايم په خپل زړه کښې ئې ونيسه او په
١١ خپلو غوږونو ئې واوره ١١ راشه بنديانو ته يعني ځامنو دَ خپل قوم
ته ورشه او خبري ورسره وکړه او ورته ووايه چه خداوند يهوه
داسي فرمايي که هغوي اورِي او که انکار وکړِي
١٢ ١٢ او روح زه واخستلم او ما په خپل وروستو يو لوي آواز دَ
شنغ واوريده چه دَ خداوند يهوه جلال دِ دَده له مکانَ مبارک
١٣ وِي ١٣ او دَ حيوانانو دَ پرونو آواز چه يو په بل به لگيدل او دَ څرخونو
١٤ آواز دَ هغو سره او دَ يو لوي شنغ آواز ١٤ او روح واخستلم يوئې
وړلم نو زه سخت دله دَ خپل روح په جوش کښې روان شولم او دَ
١٥ خداوند يهوه لاس په ما سخت وه ١٥ او زه په طل ابيب کښې بنديانو
ته چه دَ کبار درياب په غاړي اوسيدل ورغلم او هغوي مِ هلته
ناست وليدل او هلته ئې اوو ورځو پوري حيران ناست وم
١٦ ١٦ او پس له اوو ورځو داسي وشول چه دَ يهوه کلام ما ته
١٧ راورسيده ١٧ اي آدمزاده ما ته دَ اسرائيل دَ کور نگهبان مقرّر
کړي نو ته ځما دَ خولي کلام واوره او ځما له لورِي ئې آگاه کړه -
١٨ ١٨ هرکله چه زه شرير ته ووايم چه ته به په يقين سره مړ شي او
ته هغه آگاه نه کړي او شرير ته و نه وايي چه هغه له خپلي خطا

لاړي اګاه کړي شِي تاچه خپل ځان خلاص کړي نو هم هغه شرير
به په خپلي بديُ کښ مړ شِي ليکن زه به دَ هغه خون ستا له لاسَ
١٩ طلب کړم ١٩ ليکن که ته شرير اګاه کړي او هغه له خپل شرارتَ
او له خپلي بدي لاري را و نه ګرزي نو هغه به په خپلي بدکاريِ کښ
٢٠ مړ شِي ليکن ته به خپل ځان خلاص کړي ٢٠ او که صادق له خپل
صداقت نه وګرزي او ګناه وکړي او زه دَ هغه په مخ کښ توړي
خوړونکي کيږدم نو هغه به مړ شِي ځکه چه تا هغه اګاه نه کړ نو
هغه به په خپلي خطا کښ مړ شِي او دَ هغه صداقت چه ده
کړي دَي به ياد به نه کړي شِي ليکن زه به دَ هغه خون ستا له
٢١ لاسَ طلب کړم ٢١ ليکن که ته هغه صادق آګاه کړي چه هغه
صادق خطا و نه کړي او هغه ګناه و نه کړي نو هغه به په ژوندون
ژوندي شِي ځکه چه نصيحت ئي قبول کړاو ته به خپل ځان خلاص کړي
٢٢ ٢٢ او هلته دَ خداوند لاس په ما باندِ وه او ده راته وويل
چه پورته شه ميدان ته لاړ شه او هلته به زه له تا سره خبري
٢٣ وکړم ٢٣ پس زه پورته شوم ميدان ته لاړم او ګوره چه دَ
خداوند جلال دَ هغي جلال په دود چه ما کبار درياب ځنګه ليدلي
٢٤ وه ولاړ دَي او زه پرمخ پريوتم ٢٤ پس روح په ما کښ ننوت او زه
ئي په پښو ودرولم او له ما سره ئي په خبرو کښ وويل لاړ شه
٢٥ په خپل کور کښ په ځان پسي دروازه بنده کړه ٢٥ او اي آدمزاده
هغوي به په تا باندِ پړيَ واچوِي او په هغه به دِ وتړي نو ته به دَ
٢٦ هغو له منځ نه دَ باندِ و نه وزي ٢٦ او زه به ستا ژبه ستا په تالو پوري
ونښلوم چه ته ګونګ شي او ته به هغو له ترټونکيَ سړيَ نه شي ځکه
٢٧ چه هغه باغِي خاندان دَيَ ٢٧ ليکن هرکله چه زه تا ته خبري کوم
نو زه به دِ خوله پرانزم پس ته به هغوي ته ووايي چه خداوند يهوه
داسي فرمايي هغوي چه اوري نو وا دِ وري او چه انکار کوِي نو انکار

دِ وکړِي څکه چه هغه یاغي خاندان دي ÷

# څلورم باب

1 آ او اي آدمزاده ته یوه خښته درسره واخله او په خپل مخ کښې ئې
2 کیږده او په هغې باندِ ښهر دَ اورشلیم نقش کړه ۲ او هغه قلابند کړه
او دَ هغه په مقابل برجونه جوړ کړه په هغه باندِ مورچه جوړه کړه
او دَ هغې په مقابل خیمي ودروه او دَ هغو چاپیره منجنیقونه ولګوه
3 ۳ بیا دَ ځان دَپارَ دَ اوسپني یوه تیغنه واخله او دَ ځان او دَ ښهر
په منځ کښې ئې ودروه چه هغه د اوسپني دیوال جوړ شي او ته
خپل مخ دَ هغه په لوري کړه او هغه به قلابند شي او ته به
دَ هغه ګیر کونکي شي دا به دَ اسرائیل دَ خاندان دَپارَ نخښه شي
4 ۴ بیا ته په خپل کیڼ اړخ څمله او دَ اسرائیل دَ کور بدکاري
په هغه کیږده او دَ هغو ورځو په شمار چه ته به هغه پروت اوسې
5 ته به دَ هغو دَ بدکاریو زغمونکي اوسې ۵ لیکن ما دَ هغو دَ بدکاریو
کالونه دَ هغو ورځو دَ شمار په موافق چه دري سوه نوي ورځي دي
6 تا له مقرّر کړِي دي نو ته به دَ اسرائیل دَ کور ګناه پورته کړي ۶ او
هرکله چه ته هغه پوره کړي بیا په خپل ښي اړخ څمله او تر څلویښتو
ورځو پوري دَ یهوداَ دَ خاندان بدکاري پورته کړه ما تا له دَ هري ورځي
7 په ځاي یو کال مقرّر کړ ۷ بیا دَ اورشلیم په قلابندیِ به خپل مخ
وګرزوي او خپل بازو به برمنډه کړي او دَ هغه په خلاف به نبوّت
8 وکړي ۸ او ګوره زه به په تا باندِ پړي واچوم چه ته به له یوه اړخ بل ته
وانه وړي تر هغه پوري چه تا دَ خپلې قلابندیِ ورځي پوره کړي نه وِي
9 ۹ او ته دَ خپل ځان دَپارَ غنم اوربشي او باقلا او مسور او دوزار
او تورغنم واخله او په یوه لوښي کښې ئې کیږده او دَ خپل ځان دَپارَ
دَ هغو ورځو په شمار چه ته په کښې په خپل اړخ څملي پروت يې ورنه

١٠ جوړي کړه ته به دري سوه نوي ورځي هغه خوري ١٠ او ستا خوراک
چه ته ئي خوري په وزن دِ وِي يعني دَ يوي ورځي دَپارَ شل شل مثقال
١١ ته به ئي وقت په وقت هغه خوري ١١ ته به اوبه په اندازي سره
څښنکي شپږمه حصّه دَ هِين ته به ئي وقت په وقت هغه څښې
١٢ ١٢ او ته به دَ اوربشو ګکوړي خوري او ته به ئي دَ هغو دَ سترګو دَ
١٣ وړاندِ په هغه غلوچه له انسانَ ووزي پخه کوي ١٣ او خداوند
وويل چه په دي شان به بني اسرائيل خپلي ناپاکي ډوډيِ دَ هغو
١٤ قومونو په مينځ کښ چه زه ئي هلته وشړم و به ئي خوري ١٤ پس
ما وويل چه هَي اي خداوندَ بهوه ګوره زما ځان پليت شوي نه دي
او له خپلي ځوانئ نه مِ تر اوس پوري هيڅ مرداره ياخيري شوي
١٥ خوړلي نه دي او ګنده غوښي مِ په خولي کښ راغلي نه دِي ١٥ پس ده
راته ووِکوره ما تا ته دَ انسان دَ غلو په عوض کښ دَ غوا غوشايه
١٦ درکړي دِي نو ته خپله ډوډيِ په هغو پخوه ١٦ او ده راته وويل چه
اي آدمزاده ګوره زه به په اورشَليم کښ دَ ډوډيِ تکيه ماته کړم
او هغوي به ډوډيِ په تول او په فکر سره خوري او اوبه به په
اندازي او په حيرانئِ سره څښِي تاچه هغوي دَ ډوډيِ او دَ اوبو محتاج
شِي او سري له خپل ورور سره حيران شِي اودَخپلي بدکارئِ په سبب فنا شِيْ

# پنځم باب

١ ١ او اي آدمزاده ته دَخپل ځان دَپارَ يوه تيره چاړه واخله هو دَ
نائي چاړه او خپل سر او خپله ږيره پرِ وخريه او دَخپل ځان دَپارَ
٢ تله واخله او ويښته پرِ وتله و ئي وبشه ٢ او دَ ښهر په مينځ کښ
دَ هغي دريمه په اور وسيزه هرکله چه دَ قلابندئِ ورځي پوره شِي
او دريمه حصّه واخله او چاپيره په چاړي ئي ووهه او دريمه حِصّه
٣ په باد والوزوه او زه به په هغو پسي توره وباسم ٣ او له هغوي نه ته

لږ څه په شمار واخله او په خپلي لمن کښې ئې وتړه ۴ بيا له دغو نه ۴
څه واخله او دَ اور په منځ کښې ئې واچوه او په اور ئې وسيزه له
هغو نه به اور دَ اسرائيل په ټول کور ووځي
۵ خداوند الله داسي فرمائي دغه اورشليم دي ما دَ قومونو په ۵
منځ کښې ودرولي دَي او ددَه په چاپير ملکونه دِي ۶ ليکن ده ځما دَ ۶
عدالتونو په شرارت سره له قومونو نه او ځما دَ حکمونو ئې له چاپيره ملکونو
نه به شر سره مخالفت وکړ ځکه چه ځما عدالتونه ئې ترک کړل او ځما
په حکمونو لا نه رل ۷ دي دَپارَ خداوند يهوه داسي فرمائي اګر که تاسي ۷
له قومونو نه چه له تاسي چاپيره دِي زيات ججنيان شوئِ او ځما په
حکمونو لا نه رئِ او ځما په عدالتونو سو عمل ونه کړ په موافق دَ عدالتونو
دَ قومونو چه له تاسو نه چاپيره دِي ۸ نو خداوند يهوه داسي فرمائي ۸
چه ګوره هم زه ستا مخالف يم او ستا په منځ کښې به دَ ټولو قومونو
دَ سترګو دَ وړاندِ عدالتونه وکړم ۹ او زه به ستا دَ ټولو پليتو ۹
څيزونو په سبب له تا سره هم هغه وکړم چه ما هرګز کړي نه دِي
او چه زه به ئې بيا هيچري داسي ونه کړم ۱۰ نو ستا په منځ کښې به ۱۰
پلرونه ځامن وخوري او زامن به خپل پلرونه وخوري په تا کښې به
عدالتونه وکړم او ستا ټول باقيه به په هرې باد کښې وشندم -
۱۱ دي دَپارَ چه زه حيّ يم خداوند يهوه وائي چه له دي سببَ چه ۱۱
تا په خپلو ټولو مکروهو څيزونو او تا په خپلو ټولو پليتو سره ځما
مقدّس ناپاک کړي دَي دي دَپارَ به زه تا هم لنډ کړم سترګي به مِ
شفقت ونه کړي زه به هم زړه سوي ونه کړم ۱۲ ستا دريمه به په وبا ۱۲
سره مړه شِي او په قحط سره به ستا په منځ کښې هلاک شِي او ستا
دريمه به په توُرِي سره ستا په چاپيرَ پريوزي او دريمه به په هرې
باد کښې وشندلي شِي او زه به په هغو پسي تُوره وباسم ۱۳ ځما قهر ۱۳
به تمام شِي او زه به خپل غضب په هغوي قرار کړم او تسلّي به

ومومم او هرکله چه زه خپل قهر په هغوي تمام کړم نو به هغوي
۱۴ پوه شي چه ما خداوند په خپل غیرت سره دا ټول ویلي وُو ۱۴ او زه
به تا دَ هغو قومونو په منځ کښ چه ستا په شا اوخوا دِي او دَ ټولو
۱۵ تېریدونکو په سترګو کښ يوه خرابه او ځاي دَ ملامتیا کړم ۱۵ او ځاي دَ
عبرت او ځاي دَ حیراني به شي هرکله چه زه به غصّه .او په غضب او په
سختو ملامتیاوُ سره ستا په منځ کښ عدالت وکړم هم ما خداوند دا
۱۶ فرمایلي دِي ۱۶ هرکله چه زه دَ قحط بدغشِي چه دَ هغو دَ هلاکت دَپارَ
دِي دَ هغو په لورِي واستوم هغه چه زه به ئي ستاسي دَ هلاکت دَپارَ
واستوم او زه به په تاسي کښ لوږه زیاته کړم او ستاسي دَ ډوډۍ
۱۷ تیکاونړه به ماته کړم ۱۷ او زه به په تاسي کښ قحط او بد درندګان
واستوم او هغوي به تا بې ځویَ کړي او مرګو او خونریزِي به ستا په
منځ کښ تېر شِي او زه به په تاسو توره راوړم ما خداوند ویلي دِيْ

# شپږم باب

۱ ۱ او دَ خداوند کلام په ما باندِ نازل شه اوده وُوِ ۲ اي آدمزاده ته
دَ اسرائیل دَ غرونو په لورِي مخ کړه او دَ هغو په خلاف نبوّت وکړه -
۳ ۳ او ووایه چه اي دَ اسرائیل غرونو دَخداوند الله کلام واورئِ خداوند
الله غرونو او غونډیو او ویالو اوخوړونو ته داسي وايِي چه ګورئِ زه هو
۴ زه به په تاسي تُوره راوړم او ستاسي لوړ مکانونه به برباد کړم ۴ او
ستاسي مذبحونه به خراب کړي شِي او ستاسي شمسِي بُتان به مات
کړي شِي او زه به ستاسي مقتولان ستاسي دَ بُتانو دَ وړاندِ وغورزوم
۵ ۵ او دَ بنِي اسرائیل دَ مړیو لاشونه به دَ هغو دَ بُتانو دَ وړاندِ کیږدم
او زه به ستاسي هډونه ستاسي دَ مذبحونو په ګرداګرد تار په تار
۶ کړم ۶ او ستاسي دَ استوګني په ټولو مکانونو کښ به ښهرونه وِیران
پراته وِي او اوچت مکانونه به ویجاړ شِي تاچه ستاسي مذبحونه

خراب شي او وِیران شِي او ستاسي بُتان مات شِي او پاتي نه شِي
او ستاسي شمسِي بُتان پرېکړې شِي او ستاسي عملونه نابود کړې شِي
۷ ۷ او مقتولان به ستاسي په منځ کښې پرېوزي او تاسي به پوه شئ
۸ چه زه خداوند یم ۸ لیکن زه به یوه باقیه پرېږدم تا چه ستاسي
وِي چه دَ قومونو په منځ کښې له تورې خلاص شِي هغه وقت چه
۹ تاسي دَ ملکونو په منځ کښې پراګنده شئ ۹ او هغه چه له تاسي نه
خلاص شِي دَ هغو قومونو په منځ کښې چه هلته دوي په بند بیولي
شِي ما به یاد کړِي ځکه چه زه دَ هغوي له زناکارو زړونو چه له
مانه لرې شول او دَ هغو له زناکارو سترګو چه دَ خپلو بُتانو په
پیروئ کښې دِي مات کړم او هغوي به دَ خپلو ټولو بدکاریو په سبب
چه هغوي په خپلو ټولو پلیتیو کښې وکړې له خپله ځانه به پخپله
۱۰ نفرت وکړِي ۱۰ پس هغوي به پوه شِي چه زه خداوند یم ما عبث ونه
ویل چه دا بدِي به په هغو وکړم

۱۱ ۱۱ خداوند یهوه داسي وایِي چه لاس ووهه او په پښه ودربه
او وایه چه دَ اسرائیل دَ کور په ټولو بدو پلیتو افسوس دَي چه
۱۲ دوي به په تورې او په قحط او په وبا پرېوزي ۱۲ او هغوي چه لرې دِي
په وبا به مړه شِي او هغوي چه نزدې دِي په تورې به پرېوزِي او
هغوي چه باقي او ګیر کړِي شِي نو په قحط سره به ومرِي او زه به خپل
۱۳ قهر هم هسي پرِ تمام کړم ۱۳ پس تاسي به پوه شئ چه خداوند
زه یم هر کله چه دَ دوي وژلي دَ هغوي بُتانو څخه دَ هغو دَ قربانګاهونو
په څلورو طرفونو وِي په هرې اوچتي غوندئ او دَ غرونو په ټولو
څوکو او تر هرې زرغونې ونې لاندِ او تر هر یوه ګڼ بلوط دَ لاندِ هر
ځاي چه هلته کښې به هغوي دَ خپلو ټولو بُتانو دَ پارَ خوشبویي نزدې
۱۴ کوي ۱۴ او زه به په هغوي خپل لاس اوږد کړم او زه به زمکه
ویجاړه او وِیرانه کړم دَ هغوي په ټولو استوګنو کښې له بیابانَ تر

دبله پوري نو هغوي به پوه شِي چه زه خداوند يم *

# اووم باب

۱ ۲ آ او بيا دَ خداوند کلام ماته راغي او ده ووېل ۲ او ته اي آدمزاده
خداوند يهوه دَ اسرائيل زمکي ته داسي فرمايي چه آخرت شه دَ زمکي
۳ په څلورو کونجو آخر ورسيده ۳ اوس په تا آخر شنه او زه به
خپله غُصّه په تا درواستوم او ستا دَ لارو په موافق به ستا
۴ عدالت وکړم او په تا به ستا ټولي پليتيِ راوړم ۴ څما سترګي به
په تا شفقت و نه کړي او زه به په تا رحم و نه کړم بلکه زه به
ستا لاري په تا راوړم او ستا پليتي به ستا په منځ کښ وِي تا چه
تاسي و پوهيږئ چه زه خداوند يم
۵ ۵ خداوند يهوه داسي وايي بلا هو يواځي بلا وګوره راځي
۶ ۶ آخر راغي آخر راغلي دَي هغه په تا بېدار دَي ګوره هغه راغيَ
۷ ۷ اي ته چه په زمکي اوسي آخر دَ زماني دَي وقت در ورسيده ورځ
۸ دَ خفقان نژدي شوه او نه آواز د په شاد غرونو ۸ له اوس نه لږ څه په
هسته زه به خپل قهر په تا وکړم اوس به زه نژدي خپل غضب
توي کړم او خپل قهر به په تا تر آخره پوري ورسوم او ستا دَ
لارو په موافق به ستا عدالت وکړم او ستا ټولي پليتيِ به په تا
۹ راولم ۹ څما سترګي به شفقت و نه کړي او زه به رحم و نه کړم
او لکه چه ستا لاري دِي هم هسي به په تا راولم او ستا پليتي
به ستا په منځ کښ وِي او تاسي به و پوهيږئ چه زه وهونکي
۱۰ خداوند يم ۱۰ ګوره هغه ورځ ګوره هغه راغلي دَه دور د تېر شه
۱۱ په امسا کښ غوټيِ وشوي مغروري و ټوکيده ۱۱ ظلم دَ شرلښتي
ته پورته شه هيڅوک به له هغو پاتي نه شِي دَ هغو له ټولي نه
هيڅوک نشته او نه دَ هغو له دولت او په هغو به ويِر و نه کړي

۱۲ شِي ۱۲ وقت راغي ورځ نژدې ورسيده پيرودونکي دِ خوښ نه وِي
نه خرڅوونکي دِ خپه ځکه چه په هغو وارو ټوليو غضب نازل دَي
۱۳ ۱۳ ځکه چه خرڅوونکي به خرڅ کړِي شوِي ته بيا و نه ګرزِي اګر که
اوس هغوي دَ ژونديو په منځ کښ دِي ځکه چه رؤيا دَ هغو وارو
ټوليو په باب کښ ده يو به هم و نه ګرزِي او نه به څوک دَ خپل
۱۴ ژوند په بدکارئِ خپل ځان مضبوط کړِي ۱۴ تورنګ ئي پو کړي دَي
چه ټول تيار شِي ليکن هيڅوک جنګ ته نه ځِي ځکه چه زما قهر
۱۵ په هغه واره ټولِي باندِ دَي ۱۵ توره له باهره او وبا او قحط له دننه
دِي او هغوي چه په پټِي کښ دِي په توُري به مړه کړانه وِي او
۱۶ هغه چه په ښهر کښ دِي قحط او وبا به ئي و نغرِي ۱۶ ليکن هغه
چه له دوي نه خلاص شِي خلاص به شِي او دَ خوړ دَ کوترو په
دود به په غرونو وِي او ټول به وِير وکړِي هر يو په خپلي بدکارئ
۱۷ کښ ۱۷ ټول لاسونه به سُست شِي او ټول ځنګنونه به دَ اوبو په
۱۸ شانَ نرم شِي ۱۸ هغوي به ملا په ټَړئِ وتړِي او هول به ئي پټ کړِي
او دَ ټولو په مخونو به شرم وِي او دَ هغوي ټولو سرونه به ګنجَ وِي
۱۹ ۱۹ هغوي به خپل سپين زر په سړکونو وغورزوِي او دَ هغوي
سره زر به دَ نفرتِ ځيز په دود وِي دَ خداوند دَ قهر په ورځ به
دَ هغوي سره او سپين زر هغوي خلاص کولِي نه شِي هغوي به
خپل ځانونه ماړه نه کړِي او نه به خپل لړمون ډک کړِي ځکه چه
۲۰ هغه دَدوي دَ بدئ لغزيدنه شوله ۲۰ او دَ هغو ښائسته کالِي چه
دِي دَدي مغرورئِ دَپارَ ږيښي شوِي دِي ليکن هغوي خپل نفرتِي
او مکروه بُتان په هغه کښ جوړ کړِل ځکه چه ما هغه دَ هغو دَپارَ
۲۱ دَ ګنده ځيز په دود کړِل ۲۱ او زه به هغه دَ لوټ دَپارَ دَ بيګانو
په لاسونو کښ او دَ شوکولو دَپارَ دَ زمکي دَ شريرانو په لاس کښ
۲۲ وسپارم او هغوي به هغه ناپاک کړِي ۲۲ او زه به خپل مخ له

هغوي وګرزوم تا چه هغوي ځما خلوت‌خانه ناپاکه کړي په هغه کښ
۲۳ به شوکونکي راشي او هغه به ناپاک کړي ۲۳ ځولاني جوړي کړه ځکه
چه زمکه دَ خون له ګناهونو ډکَ دَه او ښهر له ظلمَ ډک دَيَ -
۲۴ ۲۴ زه به له غیر قومونو نه هغوي چه له بدو بد دِي راولم او
هغوي به دَدوي کورونو په میراث واخلي او زه به دَ زبردستو
غرور ورک کړم او دَدوي مقدّس ځایونه به ناپاک کړي شي -
۲۵ ۲۵ هلاکت راځي او هغوي به سلامتیا طلب کړي لیکن هغه به
۲۶ نه وِي ۲۶ په بلا پسي به بلا راشي او په خبر پسي به خبر نو دوي
به له نبي نه رؤیا طلب کړي لیکن شریعت به له کوهن نه او مصلحت
۲۷ به له بزرګانو ورک شي ۲۷ بادشاه به وِیر وکړي او شاهزاده به
ویراني واغوندِي او دَ خلقو لاسونه به په رپ کښ وِي زه به له
هغوي سره دَ هغو دَ لارو په موافق وکړم او لکه دَ هغوي دَ عدالتونو
په شان به ئي عدالت وکړم او هغوي به پوه شي چه زه خداوند یم*

# اتم باب

۱ آ او دَ شپږم کال دَ سپږمي میاشتي په پنځم تاریخ داسي وشول چه
زه په خپل کور کښ ناست وم او دَ یهودیانو بزرګان ځما دَ وړاندِ
ناست وُو چه هلته کښ دَ خداوند یهوه لاس په ما ولګیده
۲ ۲ نو ما نظر وکړ او څه ګورم چه یو صورت دَ اور دَ شکل په شان
په نظر راغي دَ هغه دَ ملا له شکله تر لاندِ پوري اور او دَ هغه
له ملا نه تر پاسَ پوري لکه شکل دَ بریښنا چه دَ هغه رنګ دَ
۳ صیقل کړیو زیړو په دود وه ۳ او هغهٔ دَ یوه لاس شکل راوویست
او زه ئي دَ سر له څڼو ونیولم او روح زه دَ آسمان او دَ زمکي په
منځ کښ هسک کړم او زه ئي دَ الله په دیدارونو کښ اورشلیم ته
دَ شمال په طرف دننه په دروازي کښ چه هلته دَ غیرت بت کښناستو کي

۴ وُه چه غیرت پیدا کوِي راوستلم ۴ او گوره چه هلته کښ دَ اسرائیل
دَ الله جلال وه دَ هغه دیدار په شان چه په هغي میدان کښ
۵ مِ لیدلي وه ۵ پس هغه ماته ووِیل چه اي آدمزاده ته خپلي
سترگي دَ شمال دَ لاري په لوري پورته کړه نو ما دَ شمال دَ لاري
په لوري سترگي پورته کړي او گوره دَ شمال دَ لاري په طرف په
دروازي په لوري دَ مذبح هغه بُت دَ غیرت په ځاي دَ ننوتو کښ
۶ دَي ۶ او هغه راته ووِیل چه اي آدمزاده ته دَ هغو کار وِیني دا لوي
گندگيِ چه دَ اسرائیل کور ئي دلته کوِي تا چه زه له خپل مقدس
لري شم لیکن ته بیا وگرزه نو ته به له دي نه لوي گندگيِ ووِیني
۷ ۷ پس هغه زه دَ غولي و دروازي ته راوستم او چه ما نظر وکړ
۸ نو گوره چه په دیوال کښ یو سوري دَي ۸ پس هغه ماته ووِیل چه
اي آدمزاده ته اوس دیوال وکنه نو چه ما دیوال وکنده نو گوره
۹ چه دروازه وه ۹ بیا ده راته ووِیل چه دننه لاړ شه او هغوي چه
۱۰ هغه نفرتي گندگيِ دلته کښ کوِي وئي گوره ۱۰ پس زه دننه ورغلم
او و مِ کتل او گوره ټول شکلونه دَ خځیدنکو او دَ نجسو حیوانانو
او دَ اسرائیل دَ کور دَ ټولو بُتانو چاپیره په دیوال باندِ نقش کړي
۱۱ شوي دَي ۱۱ او دَ هغو دَ وړاندِ دَ اسرائیل دَ کور له سپین ږیرو نه
اویا سړي ولاړ دِي او یازنیاه بنِ شافان دَ هغو په مینځ کښ ولاړ
دَي او دَ هر یوه په لاس کښ یو یو عودسوز وُه او دَ بخور اوریځ
۱۲ خوشبویه پورته شوه ۱۲ نو هغه راته ووِیل چه اي آدمزاده تا لیدلي
دِي چه دَ اسرائیل دَ کور سپین ږیري په تیاري کښ هر سړي دَ
خپلو تصویرونو په کاشاني کښ څه کوِي ؟ ځکه چه دوي وائِي چه
۱۳ خداوند مو نه وِیني خداوند زمکه پریښي ده ۱۳ او هغه ماته
ووِیل چه ته بیا وگرزه لوي مکروه کارونه چه هغوي ئي کوِي ووِینه
۱۴ ۱۴ نو هغه زه دَ خداوند دَ کور دَ شمالِي آستانئ و دروازي ته

راوستم او څه گورم چه هلته کښې ښځې ناستې په تموز ژړا کوونکې
۱۵ وې ۱۵ او هغه ماته ووئيل چه اې آدمزاده تا دا ليدلې دي څه؟ ته
۱۶ يو بل وار وگرزه او بيا به له دې نه لوئې نفرتې څيزونه وويني ۱۶ او
هغه زه دَ خداوند دَ کور دننه غولي ته ورننه ويستلم او گوره چه دَ
خداوند دَ کور په دروازې باندِ دَ دهليز او دَ مذبح په منځ کښې
په گمان سره پنځه ويشت سړي دِي چه شائې دَ خداوند دَ هيکل په
لورې او مخونه ئې دَ مشرق په لورې دِي او دَ مشرق په لورې نمر ته
۱۷ سجده کوي ۱۷ او هغه ماته ووئيل چه اې آدمزاده تا دا ليدلي دِي
دَ يهوداه کور ته دا سپکه دَه څه؟ چه دوي دا پليت کارونه کوي لکه
چه هغوي ئې دلته کوي چه هغوي خو ملک له ظلم ډک کړي دي
او گرزيدلي دِي چه ما په غُصّه کړي او گوره هغوي خپلې پوزې ته
۱۸ ښاخ نږدې ۱۸ ليکن زه به هم په قهر سره ورسره وکړم خما سترگې
به شفقت و نه کړي او زه به رحم و نه کړم او اگر که هغوي
په لوئې آواز سره خما په غوږونو کښې نارې وکړي نو هم زه به ئې وانه ورم

# نهم باب

۱ ۱ او هغه په لوئې آواز سره خما په غوږونو کښې ناره وکړه و ئې
ويل چه هغوي چه دَ ښهر بندوبست کوونکې دِي نږدې ئې کړه
۲ او دَ هر يو سړي په لاس کښې دِ دَ هلاکولو وسله وِي ۲ او گوري
شپږ سړي دَ پاس دروازې له لارې چه دَ شمال له لورې په
برابر دَه راغلل او دَ هر يوه سړي په لاس کښې دَ هغه وژنې
تويوونکي وسله وه او په هغو کښې يو سړي کتان آغوستي وُو
او دَ هغه په ملا کښې دَ ليکلو مشوانړئ وه نو هغوي دننه لاړل
۳ او دَ زيړو مذبح څنګه ودريدل ۳ او دَ اسرائيل دَ الله جلال پاس
له کروبيانو چه دَي په هغوي باندِ وه پورته شه دَ کور و آستانې

ته ورغي او ده هغه سړي چه کتان ئي آغوستي وُو او چه دَ ليکلو
مشوانړئ ئي په ملا وه را وباله ۴ او خداوند ده ته وويل چه دَ ۴
ښهر په منځ کښ هو دَ اورشليم په منځ کښ تير شه او دَ هغو
خلقو په تندو چه دَ هغو ټولو نفرتي کارونو په سبب چه دَ هغه
په منځ کښ کيږي اسويلي کوي او ژاړي نخښه وکړه ۵ او هغو ته ئي ۵
ځما په غوږونو کښ وويل چه تاسي دَ هغه په وروستو په ښهر
کښ لاړ شئ او وهئ ئي ستاسي سترګي دِ شفقت و نه کړي او تاسي
رحم مه کوئ ۶ تاسي زاړه او ځوانان او جنکئ او ماشومان او ښځي ۶
دَ هلاکت دَپارَ قتل کړئ ليکن په هغو چه نخښه وي هيڅ يوه ته
نږدي مه شئ او ځما له مقدس نه ئي شروع کاږئ نو هغوي له هغو
سپين ږيرو چه دَ کور دَ وړاندِ وُو شروع وکړه ۷ او ده هغوي ته ۷
وويل چه کور ناپاک کاږئ او له وژليو غولي ډک کړئ ځئ ووزئ
پس هغوي ووتل او په ښهر کښ ئي قتل وکړ ۸ او هرکله چه ۸
هغوي په قتل کښ وُو او زه پاتي شوي وم نو داسي وشول چه زه
پړمخ پريوتم او په نارو مِ وويل چه هاي خداونده يهوه ته به
ټوله بقيه دَ اسرائيل هلاکه کړي څه؟ په توييولو دَ عذاب خپل په
اورشليم باندِ ۹ نو هغه راته وُوِ چه دَ اسرائيل او دَ يهوداه دَ کور ۹
ګناه بيحده لويَ ده ځکه چه زمکه له خون نه ډکه دَه او ښهر له
بي انصافئ نه ډک دَي ځکه چه دوي وائي چه خداوند زمکه پريښي
دَه او خداوند نه ويني ۱۰ نو زه چه يم ځما سترګي به شفقت و نه کړي ۱۰
او نه به رحم وکړي زه به دَ هغوي لار دَ هغو په سرونو راولم ۱۱ او ګوره ۱۱
هغه سړي چه کتان ئي آغوستي وُو او چه مشوانړئ ئي په ملا وه
خبر ئي ورکړ و ئي ويل لکه چه دِ حکم راکړ هسي مِ کړي دِي ÷

## لسم باب

۱ پس ما نظر وکړ او ګوره چه په هغه فلک چه دَ کروبيانو په سر ۱

باندِ وه یو داسې ځیز رابنکاره شه لکه چه دَ نیلم کاڼيَ دَ هغه
٢ شکل ښکاریدنه لکه دَ تخت وه ٢ او ده هغه سړي ته چه کتان ئې
اَغوستي وُو وویل چه دَ هغو څرخونو په منځ کښې ورشه چه تر
کرّوبي دَ لاندِ دِي او دَ اور له انګارَ چه دَ کرّوبیانو په منځ کښې دي
دواړه مُټې ډک کړه او په ښهر باندِ ئې وشنده او هغهِ ما وليد
٣ چه ورننه وت ٣ او چه هغه سړيَ دننه لاړ نو کروبیان دَ کور په ښي
٤ لورِي و دریدل او دننه غولي اوريځې ډک کړ ٤ بس دَ خداوند جلال
له کرّوبي نه پورته شوي وه او دَ کور په آستانې راغي او کور له
اوريځې ډک شه او غولي دَ خداوند دَ جلال له بلقَ ډک شه او
دَ کرّوبیانو دَ پرونو آواز دَ باهر تر غولي پورې واوریدلي شه دَ
٦ قادر مطلق الله په شان آواز دَده دَ ویلو په وقت کښې ٦ او
داسې وشول چه هرکله چه ده هغه سړي ته چه کتان ئې آغوستي
وُو حکم وکړ او و ئې ویل چه نه دَ څرخونو نه او دَ کروبیانو له منځ
٧ نه اور واخله نو هغه دننه لاړ او څرخ څنګه ودریده ٧ او یوه کرّوبي
له کرّوبیانو نه خپل لاس دَ هغه اور په لورِي چه دَ کروبیانو په
منځ کښې وه وغزاوه او ورنه ئې واخست دَ هغه په لاس کښې چه
٨ کتان ئې اغوستي وُو کیښود هغه واخست او باهر ووت ٨ او دَ
کروبیانو په منځ کښې دَ هغوي تر پرونو لاندِ دَ انسان دَ لاس په
٩ شان په نظر راغي ٩ بیا ما نظر وکړ نو ګوره چه څلور څرخونه دَ
کرّوبیانو په شا او خوا دِي یوه کرّوبي څنګه یو څرخ او دویم کرّوبي
څنګه دویم څرخ وه او دَ هغو څرخونو ښکاریدنه دَ زبرجد په شان
١٠ وه ١٠ او په ښکاریدو کښې دَ هغي څلورو واړو یو شکل وه لکه
١١ څرخ چه دننه په څرخ کښې وِي ١١ او چه هغوي به تلل نو په خپلو
څلورو طرفونو به تلل له خپلو تللو به نه راګرزیدل په هر لورِي
ئې چه سر لیده په هغه پسې به تلل او چه تلل نو نه به راګرزیدل

۱۲ او دَ هغو ټولِ بدن او دَ هغو شا او دَ هغو لاسونه او دَ هغو ۱۲
پرونه او هغه څرخونه ګِرداګِرد هغه څلور واړه څرخونه له سترګو
ډک وُو ۱۳ نو ما واوریدل چه څرخونو ته آواز وشه چه اي څرخه ۱۳
۱۴ او دَ هر یوه څلور مخونه وُو دَ اول مخ دَ کرّوبي مخ او دَ دویم مخ ۱۴
دَ انسان مخ او دَ دریم مخ دَ ببر زمري او دَ څلورم مخ دَ قچیر وه
۱۵ او کرّوبیان پورته شول او دا هغه حیوان وه چه ما دَ کبار دریاب ۱۵
په غاړي لیدلي وه ۱۶ او چه کرّوبیان به تلل څرخونه به هم ورسره ۱۶
تلل او هرکله چه کرّوبیانو به خپل وزر پورته کول تا چه له زمکي
اوچت شِي نو هغه څرخونه به جدا ورنه نه ګرزیدل ۱۷ او چه هغوي ۱۷
به پورته کیدل دا به هم ورسره پورته کیدل ځکه چه دَ حیوان
روح په هغو کښ وه ۱۸ نو دَ خداوند جلال دَ کور له پاس آستانۍ ۱۸
نه او پاس په کرّوبیانو ودریده ۱۹ پس کرّوبیانو خپل وزر پورته کړل ۱۹
او ځما دَ نظر دَ وړاندِ له زمکي نه وختل او څرخونه له هغو سره
وُو او هغوي دَ خداوند دَ کور دَ مشرِقي دروازي په آستانۍ کښ
ودریدل او دَ اسرائیل دَ الله جلال پاس په هغو باندِ وه ۲۰ دا ۲۰
هغه حیوان دَي چه ما دَ اسرائیل دَ الله دَ لاندِ دَ کبار دریاب په
غاړي لیدلي وه او ما ته معلوم وه چه دا هغه کرّوبیان دِي ۲۱ چه ۲۱
دَ هر یوه څلور مخونه وُو او دَ هر یوه څلور وزر او دَ هغوي تر
وزرو لاندِ دَ سړِي غوندِ لاسونو وُو ۲۲ او دَ هغو دَ چهرو شکل ۲۲
هم هغه چهري وي چه ما دَ کبار دَ دریاب په غاړه لیدلي وي ښکاریدنه
ئې او ذاتونه ئې هر یو به سم برابر په مخ تله ✣

## یولسم باب

۱ او بیا زه روح پورته کړم دَ خداوند دَ کور په مشرِقي دروازي ۱
چه دَ هغي مخ مشرِقي خوا ته وه بوتلم او ګوره چه دَ هغي دروازي

به آستاني ښخته وښت سرې دِي او ما دَ هغو په منځ کښ یازنیاه زوي
۲ دَ عزور او فلطیاه زوي دَ بنایاه دَ خلقو سرداران ولیدل ۲ او
خداوند ما ته وویل چه اي آدمزاده دا هغه خلق دي چه په دي
۳ ښهر کښ دَ بدئ بندوبست کوي او بد مصلحت کوي ۳ چه دوي
وایي چه هغه نزدي نه دي چه کور بنا کوو هغه دیګ دي او مونږ
۴ غوښه ۴ دي دَ پاره ته دَ هغوي په خلاف نبوّت وکړه اي آدمزاده
۵ نبوّت وکړه ۵ او دَ خداوند روح په ما نازل شه او ما ته ئي وویل
چه ووایه چه خداوند داسي وایي اي دَ اسرائیل کورَ تاسي داسي
۶ ویلي دِي زه ستاسي دَ زړه له خیالونو نه واقف یم ۶ تاسي په دي
ښهر کښ وژلي شوي زیات کړل بلکه دَ هغه لاري مو له وژلیو شیو
۷ دکي کړي دِي ۷ دي دَ پارَ خداوند یهوه داسي فرمایي چه ستاسي
وژلي چه په منځ کښ مو ښې دِي دا هغه غوښې او دا هغه دیګ
۸ دَي لیکن زه به تاسي دَ هغه له منځ نه باهر راوباسم ۸ تاسي له تورې
وبریدلي يئِ او خداوند یهوه وایي چه زه به په تاسي توره وکمارم
۹ ۹ او زه به تاسي دَ هغه له منځ نه راوباسم او تاسي به دَ بیګانه وُ
په لاسونو کښ ورکړم او زه به ستاسي په منځ کښ عدالت وکړم
۱۰ ۱۰ تاسي به په تورې پریوزئِ او دَ اسرائیل په سرحد کښ به په تاسي
۱۱ فتوي وکړم او تاسي به پوه شئِ چه زه خداوند یم ۱۱ دا ښهر به
ستاسي دیګ نه شي نه به تاسي دَ هغه په منځ کښ غوښه شئِ بلکه
۱۲ زه به دَ اسرائیل په سرحد کښ په تاسي باندِ عدالت وکړم ۱۲ او
تاسي به پوه شئِ چه زه خداوند یم ځکه چه تاسي ځما په
حقونو تللي نه يئِ او چه دَ هغه په حکمونو مو عمل ونه کړ بلکه
دَ هغو غیر قومونو په حکمونو چه ستاسي په شا او خوا دِي عمل
۱۳ مو وکړ ۱۳ او هرکاه چه ما نبوّت کاوه نو داسي وشول چه فلطیاه
زوي دَ بنایاه مړ شه نو زه پرمخ پریوتم او په لوړ آواز مې ناري

کړي و مِ وېل چه هاي خداوندَ يهوه ته به دَ اسرائيل باقيه تمامه
کړي څه ؟
۱۴ ۱۴ بيا دَ خداوند کلام ما ته راورسيده او وئي وېل ـ
۱۵ ۱۵ اي آدمزاده ستا ورونړه بيا ستا ورونړه ستا خپلوان او دَ کُل
اسرائيل کور ټول واړه هم هغه دي چه دَ هغوي په باب دَ اورشليم
اوسيدونکي واِيي چه له خداوندَ لرې اوسئِ دا زمکه مونږ ته په
۱۶ ميراث راکړي شوي ده ۱۶ دي دپارَ ته ووايه چه خداوند يهوه داسي
واِيي چه هرڅو چه ما دَ هغو قومونو په منځ کښ لرې کړي دِي او په
هغو ملکو کښ مِ پراګنده کړي دِي ليکن زه به دَ هغو دپارَ تر
لږي مُدې پوري په هغو ملکونو کښ چه دوي به ورشِي يو مقدّس
۱۷ ځاي به يم ۱۷ دي دپارَ ته ووايه چه خداوند يهوه داسي واِيي چه
زه به تاسي له خلقو نه راجمع کړم او له هغو ملکونو چه تاسي په
کښ پراګنده شوي يئِ را ټول کړم او دَ اسرائيل زمکه به تاسي ته
۱۸ درکړم ۱۸ او هغوي به هلته کښ راشِي او دَ هغوي ټول نفرتِي او
۱۹ ټول پليت څيزونه به ورنه لرې کړي ۱۹ او زه به هغوي ته يو زړه
ورکړم او يو نوي روح به په تاسي کښ کيږدم او کاڼيز زړه به دَ
۲۰ هغوي له غوښي نه وکاږم ۲۰ او هغوي ته به يو دَ غوښي زړه ورکړم
تاچه هغوي زما په فرائضو يُون وکړِي او زما حکمونه وساتِي او
عمل پرې وکړي او هغوي به زما اُمّت وِي او زه به دَ هغو الله يم
۲۱ ۲۱ او هغوي چه زړونه ئې دَ خپلو نفرتِي او دَ پليتو څيزونو دَ زړه
په پيروئِ کښ دِي نو خداوند يهوه واِيي چه زه به دَ هغو لارې
۲۲ دَ هغوي په سرونو راولم ۲۲ پس کروبيانو خپل خپل وزر پورته
کړل او څرخونه ورسره وُو او دَ اسرائيل دَ الله جلال په هغوي
۲۳ دپاسَ وُه ۲۳ او دَ خداوند جلال دَ ښهر له منځ پورته شه
۲۴ او دَ ښهر دَ مشرق دَ لورې په غره باندِ ودريده ۲۴ او بيا روح

زه پورته کړم او دَ خداي روح په رؤيا کښې بيا دَ کِسديانو په مُلک
کښې بنديانو ته وروستلم نو هغه رؤيا چه ما وليده رانه پورته شوله
۲۵ ۲۵ او ما بنديانو ته دَ خداوند ټول کلام چه هغه ماته رابنکاره کړوايهٔ

# دولسم باب

۱ آاو بيا دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او هغه ووئيل چه اي
آدمزاده ته دَ يوه سرکښې کور په منځ کښې اوسې چه سترګي لرِي چه
ووينِي ليکن هغوي نه وينِي او غوږونه لرِي چه واورِي ليکن هغوي
۳ نه اورِي ځکه چه هغوي باغِي خاندان دئ ۳ دي دَپارَ اي آدمزاده ته
دَ خپل ځان دَپارَ دَ بنديوانئِ اسباب تيار کړه او دَ ورځي دَدوي دَ
سترګو دَ وړاندِ کوچ وکړه له خپلَ مکانَ وبل مکان ته کوچ وکړه
۴ امکان لرِي چه هغوي فکر وکړِي هرڅو که باغِي خاندان ذي ۴ او
ته دَ ورځي دَ هغوي دَ سترګو دَ وړاندِ خپل اسباب لکه چه دَ
بنديوانئِ اسباب وباسِي او نمابنام دَ هغوي دَ نظر دَ وړاندِ دَ
۵ هغو په دود چه بنديوانئِ ته وزِي ووزه ۵ دَ هغوي دَ سترګو دَ
وړاندِ په ديوال کښې سوري وکړه او په هغي لاري اسباب وباسه -
۶ ۶ دَ هغوي په نظر کښې ئې په خپلي اوږي باندِ واخله او په تياري کښې
ئې وباسه او خپل مخ پټ کړه تاچه زمکه ونه وينِي ځکه چه ماته
۷ دَ اسرائيل دَ کور دَپارَ يوه نخښه کړي يي ۷ او لکه چه ماته حکم شوي
وه هم هسي مِ وکړل ما دَ ورځي خپل اسباب دَ بنديانو دَ اسباب
په شان ويوست او نمابنام له مِ په خپل لاس سره ديوال سوري
کړ او په تياري مِ هغه ويوست او دَ هغو دَ نظر دَ وړاندِ مِ په
۸ خپلي اوږي واخست ۸ او صباح له دَ خداوند کلام ماته را ورسيده
۹ او وئې ويل ۹ چه اي آدمزاده دَ اسرائيل کور چه باغِي خاندان دئ
۱۰ تا ته ئې ونه ويل څه ؟ چه ته څه کوي ۱۰ هغوي ته ووايه چه خداوند

یهوه داسي وايي چه دا بار دَ اورشلیم دَ شاهزاده دَپارَ او دَ
۱۱ ټول اسرائیل دَ خاندان دَپارَ چه دَ هغوي په منځ کښ دي ۱۱ووايه
چه زه ستاسو دَپارَ نخښه یم لکه چه ما وکړل هم هسي به له
هغوي سره وکړي شي هغوي به جلاوطنه شي او په بند به لاړ شي
۱۲ ۱۲ او هغه چه په هغوي کښ شاهزاده دي نو په تياري کښ به
ئي په خپلي اوږي باندِ واخلي و به وزي هغوي به ديوال سوري
کړي چه ورنه ئي وباسي هغه به خپل مخ پټ کړي تاچه په خپلو
۱۳ سترګو زمکه و نه ويني ۱۳ او زه به خپل جال په هغه وغوړوم او
هغه به ځما په دام کښ ونیولي شي او زه به هغوي دَ کسدیانو په
ملک کښ و بابل ته داولم لیکن دي به هغه و نه ويني او هلته
۱۴ کښ به مړ شي ۱۴ او زه به دَ هغه شاوخوا ټول مددګاران او دَ
هغه ټول ټولي په هر باد پراګنده کړم او زه به توره ورپسي وباسم۔
۱۵ ۱۵ او هرکله چه زه هغوي په قومونو کښ پراګنده کړم او په ملکونو
کښ به ئي تار په تار کړم نو به هغوي وپوهيږي چه زه خداوند یم۔
۱۶ ۱۶ لیکن زه به له هغوي نه لږ خه سړي له توري او له قحط او له مرګه
پریږدم تاچه دوي دَ غیرِ قومونو په منځ کښ هرچرته چه ځي
خپل ټول نفرتي کارونه بیان کړي او هغوي به معلوم کړي چه
زه خداوند یم

۱۷ ۱۷ او بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده و ئي ویل۔
۱۸ ۱۸ چه اي آدم‌زاده ته په رپیدلو سره خپله ډوډۍ خوره او په
۱۹ لړزیدلو او په اندیښنو سره خپلي اوبه ځښه ۱۹ او دَدي ملک
خلقو ته ووايه چه خداوند یهوه دَ اورشلیم دَ اوسیدونکیو
او دَ اسرائیل دَ زمکي په حق کښ داسي وايي چه هغوي به په
اندیښني سره خپله ډوډۍ وخوري او په حیرانۍ سره به خپلي
اوبه وځښي تاچه دَ هغه دَ اوسیدونکیو دَ ظلم په سبب دَ هغو

زمکه له هغوي ټولو څیزونو چه هغه ورنه دَکه دَه ویرانه شِي۔
٢٠ ٢٠ او هغه کِلِي چه آباد دِي ویجاړ شِي او زمکه ویرانه شِي تا چه
تاسي و پوهیږئِ چه خداوند زه یم
٢١ ٢١ او بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او هغه
٢٢ وویل ٢٢ چه اي آدمزاده هغه کوم متل دَي چه تاسي دَ اسرائیل
دَ زمکي په باب وايِئ چه ورځي اوږدی شوي او ټولي رؤیا ضعیفي
٢٣ شوي ٢٣ دي دَپاره هغوي ته ووایه چه خداوند یهوه داسي وايِي
چه زه به دا متل بند کړم بیا به دوي په اسرائیل هغه متل
و نه کړِي بلکه ته هغوي ته ووایه چه ورځي نژدي دِي او دَ ټولو
٢٤ رویاؤ خبري ٢٤ ځکه چه بیا به دَ اسرائیل دَ کور په منځ کښ باطلي
٢٥ رؤیا او دَ خوشامدي غیب کوئِي نه وِي ٢٥ ځکه چه زه خداوند یم
هم زه وایم هره خبره چه زه يِي وایم هغه به وکړي شِي دَ هغي
په کیدو به درنګ و نه شِي بلکه خداوند الله وايِي چه اي یاغي
خاندانه زه به ستاسي په ورځو کښ کلام ووایم او هغه به
پوره کړم
٢٦ ٢٦ او بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده اووئِي ویل
٢٧ ٢٧ اي آدم زاده وګوره دَ اسرائیل کور وايِي چه هغه رؤیا چه
دَي يِي وبیني دَ ډیرو ورځو دَپاره او دَ لري زمانو دَپاره نبوّت کوِي۔
٢٨ ٢٨ دي دَپاره هغوي ته ووایه چه خداوند یهوه داسي وايِي چه
بیا به ځما له خبرو نه هیڅ خبره اوږده نه شِي بلکه خداوند
یهوه وايِي هغه خبره چه ما ویلي دَه پوره به شِي ÷

## دیارلسم باب

١ ٢ ١ او دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئِي ویل ٢ چه اي آدمزاده
دَ اسرائیل له نبیانو هغوي چه نبوّت کوِي دَ هغوي په خلاف نبوّت

وکړه او هغوي ته چه له خپلو زړونو نبوّت کوي وو وایه چه دَ
۳ خداوند کلام واورئ ۳ خداوند الله داسي وايي چه هَي هَي په
احمقانو نبیانو چه دَ خپل روح پیروي کوي او هغوي هیڅ ونه لیدل
۴ ۴ اي اسرائیلَ ستاسي نبیان دَ هغو لومړو په شان دي چه په
۵ ویجاړو مکانونو کښ اوسي ۵ تاسي و سوریو ته ونه ختلئ او نه
مو دَ اسرائیل دَ کور دَپارَ دیوار جوړ کړ تا چه دوي دَ خداوند
۶ په ورځي په جنګ کښ ودرېږي ۶ هغوي باطلي او دَ دروغو رؤیا
لیدلي دي وايي چه خداوند فرمايي او دوي خداوند راستولي نه دي
۷ او نورو ګي امیدوار کړي دي چه دَ دوي خبره به ثابته شي ۷ تاسي باطله
رؤیا ونه لیده څه؟ تاسي دَ دروغو غیب ګویي ونه کړه څه؟ او څه
وائي چه خداوند ویلي دي اګر چه ما ویلي نه دي
۸ ۸ دي دَپارَ خداوند الله داسي وايي چه له دي سببَ چه
تاسي دروغ لیدلي دي او باطلي خبري مو کړي دي دي دَپارَ ګورئ
۹ خداوند یهوه داسي وايي چه زه ستاسي مخالف یم ۹ او زما لاس به په
هغو نبیانو چه باطلي ویني او په دروغ غیب ګویي کوي هغوي به زما
دَ اُمّت په ټولي کښ نه وي نه به هغوي دَ اسرائیل دَ کور په کتاب
کښ ولیکلي شي او نه به هغوي دَ اسرائیل په مُلک کښ داخل
۱۰ شي نو تاسي به وپوهیږئ چه زه خداوند یهوه یم ۱۰ له دي سببَ
هو له دي سببَ چه هغوي زما خلق په دي خبرو غولوي وايي
چه سلامتي ده او سلامتي نشته او یوه دیوال بنا کړ او ګوره بل یو
۱۱ کچه لیو کړ ۱۱ نه هغوي ته چه کچه لیوول کوي ووایه چه دغه به پرېوزي
چه دَ ګنږ باران شیبه پرې ولګیږي او تاسي به اي دَ ږلیو کا ڼیو
۱۲ پرېوزئ او یو سخته سیلئ به ئي وشلوي ۱۲ او ګوره چه هغه دیوال
پرېوزي نو تاسو ته به ونه ویلي شي څه؟ چه هغه لیو چرته دي
۱۳ چه تا په هغه کړي وه ۱۳ دي دَپارَ خداوند یهوه داسي وايي چه

زه به دَ خپل غضب په سختي سيلۍ سره هغه څيري کړم او ځما له
قهره به کُنړه شيبه دَ باران وشي او ځما په غصّي به دَ ږليو کاڼي
۱۴ پريوزي تا چه هغوي نابود کړي ۱۴ نو زه به هغه ديوال چه تا په
هغه باندِ کچه لبو کړي دَي پريباسم او په زمکي به يُ ونړوم ترهسي
حده چه دَ هغه بنياد ښکاره ځي هو هغه به پريوزي او تاسي به
دَ هغه په منځ کښ هلاک ځئ او پوه به ځئ چه زه خداوند يم
۱۵ ۱۵ زه به خپل قهر په هغه ديوال او په هغو چه کچه يُ لبو کړي دَي
پوره کړم نو پس به زه تاسي ته ووايم چه ديوال نشته او نه هغوي
۱۶ چه لبو کړي يُ دَي ۱۶ يعني دَ اسرائيل نبيان چه دَ اورشليم دَپارَ
نبوّت کوِي او دَ هغه دَ سلامتيُ رؤيا ويني او سلامتي خو نشته
خداوند يهوه وايي

۱۷ ۱۷ نو ته اي آدمزاده خپل مخ دَ خپل اُمّت دَ لونړو په خلاف
چه له خپلو زړونو نبوّت کوونکي دِي ټينګ کړه او دَ هغو په خلاف
۱۸ نبوّت وکړه او ورته ووايه ۱۸ چه خداوند الله داسي وايي چه افسوس
په ښځو چه په هر يو بند باندِ تعويذونه تړيُ او دَ هر يوه دَ قد
په موافق په سر باندِ برقع اچويِ تا چه ځانونه ښکار کانړيِ تاسي
به ځما دَ اُمّت ځانونه ښکار کوئ او دَ خپلو ځانونو دَپارَ به ځانونه
۱۹ ژوندي وساتئ څه ؟ ۱۹ او تاسي به ځما نوُم په اُمّت کښ دَ يوه
موټي اوربشو دَپارَ او دَ ډوډيِ دَ ټوکړو دَپارَ ناپاک کړئ څه؟
چه تاسي هغه ځانونه مړه کړئ چه دَ مرکولو لايق نه دِي او هغه
ځانونه ژوندي پريږدئ چه دَ ژوند لايق نه دِي چه تاسي ځما له
۲۰ خلقو سره چه دروغ اوري دروغ وايئ ۲۰ دي دَپارَ خداوند يهوه
داسي وايي چه ګورئ زه به دَ تاسي په تعويذونو چه په هغو سره
دَ دوي ځانونه دَ چرګانو په شان ښکار کوئ په خلاف يم او زه به
هغوي ستاسي له بازوګانو خلاص کړم او هغه ځانونه چه تاسي

۲۱ نې دَ چړكانو په شان ښكار كوئ خلاص به ئې كړم ۲۱ او زه به ستاسي
برقع څيرې كړم او خپل اُمّت به ستاسي له لاس نه خلاص كړم او
بيا به هيچرې ستاسي په لاس كښ نه وِي چه هغوي ښكار كړي شي
۲۲ او تاسي به پوه شئِ چه زه خداوند يم ۲۲ او دي دَپاره چه تاسي په
دروغو خبرو دَ صادق زړه خپه كړ چه ماخپه كړي نه دئ او دَ
شريرانو لاسو نه مو قوي كړي دي تا چه هغوي دَ خپل ځان دَ
خلاصولو دَپارَ له خپلي بدي لاري بيرته رانه شي چه ژوندي پاتي
۲۳ شي ۲۳ له دي سببَ به تاسي په وړاندِ بطلان او بيا به دَ دروغو
غيب كويئِ و نه وينئِ او زه به خپل خلق ستاسي له لاس نه خلاص
كړم او تاسي به پوه شئِ چه خداوند زه يم ＊

# څوارلسم باب

۱ آو له بني اسرائيل نه يو څو سپين ږيري سړي و ما ته راغلل او
۲ په مخ كښ راته كښيناستل ۲ نو دَ خداوند كلام ما ته را ورسيده
۳ او وئي ويل ۳ اي آدمزاده دغو سړيو خپل بُتان په خپل زړه كښ
و دروَل او دَ خپلي بدكارئِ تيندك وركوونكي ئې دَ خپلي څهري دَ
۴ وړاندِ ينبي دِي نو كنزه زه ورنه سوال كولي شم څه ؟ ۴ دي دَپارَ
ته له هغو سره خبري وكړه او ورته ووايه چه خداوند يهوه داسي
وايِي چه دَ اسرائيل له كورَ به هر يو سړئ چه خپل بُتان په خپل
زړه كښ ودروِي او دَ خپلي بدكارئِ تيندك وركوونكي په خپل مخ
كښ ږدِي او نبي ته ورځي زه خداوند به هغه راتلونكي دَ هغه
۵ دَ بُتانو دَ كثرت په موافق هغه ته ځواب وركړم ۵ تا چه زه دَ
اسرائيل كور دَدوي په زړونو ونيسم څكه چه هغوي ټول دَ خپلو
۶ بُتانو په سبب له ما نه پردي شوي دِي ۶ دي دَپارَ ته دَ اسرائيل
وكور ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايِي چه توبه كړئِ او له

خپلو بُتانو وګرزيِ او له خپلو ټولو ګندګو خپلو مخ وګرزوي
۷ ۷ ځکه چه هر يو سړيَ دَ اسرائيل له کورَ او له هغو بيګانه ؤ چه
په اسرائيل کښې اوسيږي او هغوي چه له ما نه خپل ځان جدا کويِ
او په خپل زړه کښې خپل بُتان ودرويِ او دَ خپلي بدکاريِ تيندک
ورکوونکيَ په خپل مخ کښې بږدِي او نبي ته ورځي چه دَ هغه په معرفت
سوال را نه وکړي هغه ته به هم زه خداوند پخپله ځواب ورکړم -
۸ ۸ او زه به خپل مخ دَ هغه سړي په خلاف وګرزوم او هغه به يوه
حيرانيِ او يوه نښه او يو مثل کړم او زه به هغه دَ خپل اُمّت
۹ له منځَ پريکړم او تاسو به پوه شيِ چه زه خداوند يم ۹ او که هغه
نبي وتکلي شي او څه ووايي نو ما خداوند هغه تکلي دَي او زه
به خپل لاس په هغه اوږد کړم او هغه به دَ خپل اُمّت اسرائيل
۱۰ له منځَ نابود کړم ۱۰ او هغوي به خپله بدکاري پورته کړي لکه چه دَ
۱۱ پوښتيدونکيو بديِ دَه هم هسي به دَ نبي بديِ وِي ۱۱ تاچه دَ اسرائيل
خاندان بيا له ما نه ګمراه نه شي او هغوي په خپلو ټولو تقصيرونو
بيا ناپاک نه شيِ بلکه خداوند يهوه وايي چه هغوي به زما اُمّت وِي
او زه به دَ هغو الله شم
۱۲، ۱۳ ۱۲ او دَ خداوند کلام ما ته را ورسيده او وئي ويل ۱۳ چه اي
آدمزاده هرکله چه زمکه خطا وکړي او په خيانت سره خيانت وکړي
نو زه به خپل لاس په هغي اوږد کړم او دَ هغي دَ ډوډيِ تکيه به
ماته کړم او قحط به پري واستوم او له هغي نه به آدميان او حيوانان
۱۴ پريکړم ۱۴ که چري دا دري سړي يعني نوح او دانيال او ايوب په هغي کښې
وِي نو خداوند يهوه وايي چه هغوي به په خپلي رښتنيِ سره يواځي
۱۵ خپل ځانونه خلاص کړيِ ۱۵ او که زه په زمکي کښې بد درندګان
تير کړم چه بي فرزنده ئي کړي تر دي حده ويرانه شي چه دَ درندګانو
۱۶ په سبب په هغي کښې هيڅوک نه تيريږي ۱۶ نو خداوند يهوه وايي

چه ځما دِ په‌ځپل ژوند قسم وِي چه اګر که دا دري سړِي دَهغي
په منځ کښ وِي نو نه به ځامن خلاص کړِي نه لونړه مګر يواځي به
دوي خلاص شِي ليکن ملک به تباه شِي ١٧ يا که زه په هغه ملک ١٧
تُوره وګمارم او ووايم چه اي تُورِي په ملک کښ تيره شه او زه
له هغه نه سړِي او حيوانات پريکړم نو خداوند يهوه وايِي چه ځما ١٨
په ځپل ژوند قسم دَي چه اګر که دا دري سړِي په هغه کښ وِي
نو نه به زامن خلاص کړِي نه لونړه بلکه يواځي دوي به خلاص شِي
١٩ يا که زه په هغه ملک وبا وګمارم او په خونريزِئ سره ځپل غضب ١٩
په هغه توي کړم چه له هغه ځاي نه سړِي او حيوانات پريکړم ٢٠ اګر ٢٠
که نوح او دانيال او ايوّب دَهغه په منځ کښ وِي نو خداوند يهوه
وايِي چه ځما په ځپل ژوند قسم دَي چه هغوي به نه ځامن نه لونړه
خلاص کړِي تش هغوي به په ځپلي رښتنيئ سره ځپل ځانونه خلاص
کړِي ٢١ پس خداوند يهوه وايِي چه څومره به زيات وِي هرکله ٢١
چه زه ځپل څلور بد حکمونه يعني تُوره او قحط او بد درندګان
او وبا په اورشليم وګمارم چه له هغه نه سړِي او حيوانات پريکړم
٢٢ نو هم ګوره چه هلته کښ به باقيه پاتي شِي چه باهر به وېستلي ٢٢
شِي هم ځامن او هم لونړه وِي ګوره هغوي به تاسي ته ووزِي او
تاسي به دَ هغو لارِي او دَ هغو کارونه ووينِئ او دَ هغو آفتونو په
باب چه ما په اورشليم وګمارل او دَ هغو ټولو په باب چه ما په هغه
راوړِي دِي تاسي به خاطرجمعَ شِئ ٢٣ او هغوي هم هرکله چه تاسي دَ ٢٣
هغو لارِي او دَ هغوي کارونه وګورِئ ستاسي دَ تسلّئ سبب به شِي او
تاسي به پوه شِئ چه هرڅه چه ما به هغي کښ کړِي دِي بي‌سببَ مِ
کړِي نه دِي خداوند يهوه وايِي +

## پنځلسم باب

١ او دَ خداوند کلام ما ته راورسېده او وئي وېل ٢ چه اي آدمزاده ١ ٢

دَ انګورو ونه له نورو ونو نه زیاته دَه څه ؟ بناخ دَ انګورو چه دَ
۳ ځنګل دَ ونو په مینځ کښې دَی ۳ له هغه نه لرګي څوک اخستلي شي
څه ؟ چه له هغه نه څه کار وکړي یا خلق له هغه نه موږئ جوړوي
۴ څه ؟ چه اسباب پرِ ځوړند کړِي ۴ ګوره هغه به اور کښې دَ بالن
دَپارَ اچولي کیږِي اور دَ هغه دواړه سرونه خوړِي او دَ هغه مینځ
۵ سوځِي نو هغه دَ څه کار لایق دَي څه ؟ ۵ ګوره چه هغه ثابت وه
دَ هیڅ کار لایق نه وُه او هرکله چه اور خوړلي دَي او وسیځلي شه
۶ نو هغه به په څه کار راشِي څه ؟ ۶ دي دَپارَ خداوند یهوه داسي
وايِي لکه چه دَ تاک ونې دَ نورو ونو دَ ځنګل په مینځ کښې په دي
شان دِي چه هغه ما دَ اور دَپارَ بالن کړِي دِي هم هسي به دَ
۷ اورشلیم اوسیدونکي کړم ۷ هو زه به خپل مخ دَ هغو په خلاف
وګرزوم هغوي څو به له اوره ووځِي لیکن اور به يې وخورِي او
هرکله چه زه دَ هغوي په خلاف خپل مخ وګرزوم نو تاسي به پوه
۸ شئِ چه خداوند زه یم ۸ او زه به هغه زمکه ویجاړه کړم
ځکه چه هغو به خیانت سره خیانت کړي دَي خداوند یهوه فرمايِي

# شپاړسم باب

۱ ۲ ۱ بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده و يې ویل ۲ چه اي آدمزاده
۳ اورشلیم دَ هغه په ګندګئِ خبر کړه او ورته ووایه چه ۳ خداوند
یهوه اورشلیم ته داسي وايِي چه ستا ریږیدل او ستا پیدایش
۴ دَ کنعان له زمکي دَي ستا پلار اموريَ وُه او ستا مور حِتِيَ ۴ او
ستا پیدایښت چه دَي نو هغه ورځ چه ته پیدا شوي ستا نوم
پریکړه نه شه او ته دَ پاکولو دَپارَ ولمبولِي نه شوي او په تا باندِ
مالګه و نه مږلي شوه او ته په اوږنږي کښې ونه ترلي شوي -
۵ ۵ دَ چا سترګو په تا باندِ مهربانِي کړِي نه دَه بلکه ته دَ خپل تولد په ورځ

کښ باهر په پټي کښ وغورزولي شوې ځکه چه ستا له ځانه نفرت
کيده ٦ او زه په تا تير شوم او ته مې په خپلو وينو کښ لړلې وليدې ٦
او ما تا ته هرکله چه ته په خپلو وينو کښ وې و ويل چه ژوندې
اوسه هو ما تا ته وويل چه په خپلو وينو کښ ژوندې اوسه ٧ ما ٧
ته دَ هغو شينکيو په شان چه په پټي کښ دِي په زرګونو مې زيات
لوي کړې نو ته زياته او لوي شوې او تر کمالَ او جمالَ پوري ورسيدې
چه ستا دواړه تِي غټ شول او ستا ويښته وټوکيدل او لوڅه
او برمنډه وې ٨ بيا زه په تا تير شوم او په تا مې نظر وکړ او ځه ٨
ګورم چه ستا وقت دَ عشق وقت وه پس ما خپله لمن درباندِې
وغوړوله او ستا برمنډوالي مې پټه کړ او ما له تا سره قسم
وخوړ او له تا سره په عهد کښ ننوتم خداوند يهوه وايِي او ته
زما شوې ٩ بيا ما ته په اوبو سره ولمبولې او ستا وينې مې در نه ٩
ووينځلې او په تا باندِې مې تيل ومږل ١٠ او ما تا ته بوټيداره جامه ١٠
واغوندوله او دَ سګ لاؤ دَ څرمني پڼې مې در په پښو کړلې او
ما په کتان سره ستا ملا وتړله او ته مې په وريښمينو سره پټ
کړې ١١ ما ته په کالو سره ښائسته کړې او ستا په لاسونو کښ مې ١١
کنګڼ او ستا په غاړې کښ مِرحيل واچول ١٢ او نته مې در په ١٢
پوزه کړه والئ مې در په غوږو کړلې او دَ ښائست تاج مې در په سر کړ
١٣ نو ته په سرو او په سپينو زرو سنګار شوې او ستا پوشاک ١٣
کتانِي او ريښمين او بوټيدار وُه او تا به دَ ميدې ډوډۍ او ګبينه
او تيل خوړل او ته پوره ښکلې شوې او ته بادشاهۍ ته ورانديِ شوې
١٤ او ستا دَ جمال په سبب ستا نوم په قومونو کښ ووت ځکه ١٤
چه هغه کامل وه په هغه ښائست سره چه ما تا ته درکړي دَي
خداوند يهوه وايِي
١٥ ليکن تا په خپل ښائست تکيه کوله او دَ خپل شهرت په ١٥

وسیلي کېښنې شوي او په هر تیریدونکي دِ زِنا توي کړه هغه
۱۶ لره وشوه ۱۶ او تا له خپلو جامو سره خپل اوچت ځایونه په رنګ
رنګ ښائسته کړل او په هغو دِ داسي کښېني والي وکړچه نه شوي
۱۷ وه نه به وشي ۱۷ او تا خپل عمده کالي ځما دَ سرو او سپینو زرو
چه ما تا ته درکړي دِي دَ ځان دَپارَ دِ دَ نرانو صورتونه جوړ کړل
۱۸ او له هغو سره دِ زِنا وکړه ۱۸ او خپل بوټي دار پوشاکونه دِ واخستل
هغه دِ پرې پټ کړل او ځما تیل او لُبان دِ دَ هغوي دَ وړاندِ
۱۹ کېښودل ۱۹ او ځما ډوډۍ چه ما تاته درکړه یعني دَ سیدي ډوډۍ
او تیل او ګبېنه چه ما په تا باندِ خوړول تا دَ هغو دَ مزه دارۍ
دَپارَ دَ هغو دَ وړاندِ کېښودل خداوند یهوه وایي چه هم داسي
۲۰ وشول ۲۰ او تا خپل زامن او لونړه چه ځما دَپارَ دِ وزیږول واخستل
او تا هغوي دَ هغوي دَ وړاندِ ذبح کړل تاچه هغوي ئې وخوري -
۲۱ ۲۱ دا ستاسي له زناکارۍ نه وړوکي خبره دَه څه ؟ چه تا ځما ځامن
هم ذبح کړل او هغوي ته دِ وسپارل چه هغوي دَ هغو دَپارَ په
۲۲ اور کښ تیریدل وکړي ۲۲ دَ خپلي ګندګۍ او دَ کښېني والي په سنخ
کښ دَ خپل جینکوالي ورځي چه ته په کښ لوڅه او لغړه وي او
۲۳ په خپلو وینو کښ لوټ پوټ کېدلي هیڅرې دِ یادي نه کړي ۲۳ او دا به
وشول چه پس له ټولي بدکارۍ ستا هئ‌های هئ‌های په تا باندِ
۲۴ خداوند یهوه وایي ۲۴ تا دَ ځان دَپارَ یو ګنبت جوړ کړ او په هر
۲۵ یو بازار کښ دِ دَ خپل ځان دَپارَ اوچت مکان طیار کړ ۲۵ تا دَ
لار په هر سرکښ خپل اوچت مکان جوړ کړ او خپل ښائست دِ
نفرتي کړ او دَ هر تیریدونکي دَپارَ دِ خپلي پښي ارتي کړي او ډیرې
۲۶ زناکارۍ دِ وکړي ۲۶ او تا له مصریانو ګوانډیانو خپلو سره چه
ډیر جسیم دِي زنا وکړه او بې‌حدَ زنا دِ وکړه تاچه ما په غصّه
۲۷ کړي ۲۷ او ګوره ما خپل لاس په تا باندِ وغزاوه او ستا ګذران

مِ کم کړه او ته مِ ستا دَ بدخواهانو فلسطیانو دَ لوڼو په لاس کښ
۲۸ چه ستا دَ فسق دَ لاري نه شرمنده کیږي وسپارلي ۲۸ نو تا له
اسوریانو سره زنا وکړه ځکه چه ته مړه کیدلي نه شوي هو تا له
۲۹ هغوي سره زنا وکړه لیکن له هغوي هم اسوده نه شوي ۲۹ او تا دَ
کنعان له ملک نه دَ کسدیانو تر ملکَ پوري خپلي زناکارئ زیاتي
۳۰ کړي لیکن په دغو هم مړه نه شوي ۳۰ خداوند یهوه وايي چه ستا
زړه څرنګه بي‌طاقتَ دي چه ته دا هرڅه کوي چه دَ مغروري فاحشي
۳۱ ښځي کار دَي ۳۱ چه ته دَ هري یوي لاري په سر باندِ خپل ګُنبت
جوړوي او په هر یوه بازار کښ خپل اوچت مکان طیار کوي او
ته دَ زناکاري په دود نه یي ځکه چه ته اجرت اخستل سپک ګڼري
۳۲ ۳۲ نه فاسقه ښځه یي چه دَ خپل میړه په عوض کښ بیګانه نیسي
۳۳ ۳۳ خلق ټولو زناکارو ته اجرت ورکوي لیکن ته ټولو عاشقانو خپلو
ته پیشکشِي ورکوي او هغوي ته اجرت هم ورکوي تا چه هغوي له
۳۴ هرطرفه له زناکارئ دَپارَ تا ته درشِي ۳۴ او ته په نسبت دَ نورو
ښځو په مخالف طور سره زناکارِي کوي ځکه چه دَ زناکارئ دَپارَ په
تا پسي هیڅوک پخپله نه درځي بلکه ته اُجرت ورکوي او تا ته اُجرت
نه درکیږي ځکه چه ته له هغو په خلاف ځي
۳۵ ۳۶ ۳۵ نو ته اي زناکاري دَ خداوند خبره واوره ۳۶ خداوند
یهوه داسي وايي دي دَپارَ چه ستا ګندګئ والوزولي شوي او ستا
دَ زناکارئ له سببَ ستا برمندوالي ښکاره شه چه تا له خپلو
یارانو سره او له خپلو ټولو نفرتي بُتانو سره کړي دَيَ او ستا
۳۷ دَ هلکانو دَ وینو په سبب چه تا هغو ته ورکړل ۳۷ دي دَپارَ کوره
زه به ستا ټول یاران چه تا ورسره مباشرت کړي دَيَ او هغوي
ټول چه تا پرِ مینه کړي دَه او له هغوي ټولو سره چه تا ورسره
کینه کړيَ دَه جمعَ کړم زه به هغوي. له څلورو طرفونو ستا په

مخالفت سره راټول کړم او دَ هغوي دَ وړاندِ به ستا برمندتوب ظاهر
٣٨ کړم تاچه هغوي ټول ستا برمندتوب ووِيني ٣٨ اوزه به په تا حکم
وکړم لکه چه دَ هغي ښځي چه نکاح ماتوِي او وِيني تويوِي حکم کيږي
٣٩ اوزه به دَ غضب او دَ غيرت ويني په تا باندِ راوړم ٣٩ اوزه به دِ
هم دَ هغو په لاس ورکړم او هغوي به ستا گُنبت ونړوي او ستا اوچتِ
مکانونه به مات کړي او ستا جامي به هم درنه وباسِي اوستا ښائسته
٤٠ کالي به يوسِي او تا به لوڅه او لغړه پريږدِي ٤٠ او هغوي به په تا
باندِ يو ټولي وخيژوِي اوتابه په کاڼريو سنگساره کړِي او په خپلو
٤١ تورو به دِ سوريُ سوريُ کړِي ٤١ او هغوي به ستا کورونه په اور
وسوځِي او دَ ډيرو ښځو دَ نظَر دَ وړاندِ به په تا فتوىٰ وکړِي او له زنا
٤٢ نه به دِ بس کړم او ته به بيا اُجرت ورنه کړي ٤٢ نو زه به خپل
قهر په تا تمم کړم او څما غيرت به له تا نه لاړ شِي او زه به په
٤٣ قرار شم او بيا به په غُصّه نه شم ٤٣ دې دَپاره چه تا دَ خپل ځوانتوب
ورځي په ياد نه کړي او په دې ټولو کولو دِ زه دِق کړم نو گوره
خداوند يهوه واِيي زه به ستا لاري ستا په سر راوړم چه ته به
بيا له خپلو ټولو پليتو کارونو زياتَ داسي فاحشي ونه کړي
٤٤ ٤٤ گوره هر يو چه متل واِيي ستا په باب به دا متل وواِيي لکه
٤٥ چه ميندي هسي لوڼړه ٤٥ نو ته لُور پخپله دَ هغي مور يي چه له
خپل ميړه او له اولاد نه ئي نفرت خوړ ته سکه خور خپله دَ هغو
خويندو يي چه له خپلو ميړونو او له خپلو هلکانو ئي نفرت کاوه
٤٦ ستا مور حِتي او ستا پلار اموري وه ٤٦ او ستا لويه خور سمرون
او دَ هغي لوڼړه دِي چه ستا په کينړ لاس اوسِي او ستا وړوکي
خور چه ستا په ښي لاس اوسِي سدوم او دَ هغه لوڼړه دِي -
٤٧ ٤٧ ليکن ته خاص دَ هغو په لار لا نه ړي او دَ هغو دَ پليتو کارونو
په موافق دِ ونه کړل چه داڅو وړوکي خبره دَه بلکه ته به خپلو

ټولو لارو کښې له هغو زياته خرابه شوې ۴۸ خداوند يهوه وائي ۴۸
چه خما پخپل ژوند قسم دئ چه ستا خور سدوم داسې ونه کړل
نه هغې نه دَ هغې لونړو لکه چه تا کړې دِي تا او ستا لونړو۔
۴۹ کوره ستا دَ سدوم دَ خور بدِي دا وه مغروري او دَ ډوډئ ۴۹
موړوالي او ډيره سلامتي دَ آرام په هغې او دَ هغې په لونړو کښې
وه او نه هغې دَ غريبانو او دَ محتاجانو لاس مضبوط کاوه ـ
۵۰ او هغوي مکرجنې وې او هغوي خما په حضور پليت کارونه ۵۰
وکړل نو لکه چه ما وليدل هم هسې مې هغوي لرې کړل ۵۱ او ۵۱
سمرون ستا نيمه گناه هم کړې نه دَه ليکن تا دَ هغو په نسبت ډېر
ډير مکروه کارونه وکړل او تا په خپلو نفرتي کارونو چه وِ کړل
خپلې خوئيندې صادقې وګرزولې ۵۲ پس ته هم چه په خپلو خوئيندو ۵۲
باندِ پخپله دَ گناهګارئ فتوىٰ کړې دَه دَ هغو گناهونو په سبب
چه دَدوې دَ گناهونو په نسبت دِ زيات پليت کړې دِي وشرميږه
هغوي له تا نه زياتې رښتنې کيږې پس ته هم رسوا شه او شرم
وزغمه څکه چه تا خپلې خوئيندې بې گناه صادقې وګرزولې ۵۳ او زه ۵۳
به دَ هغو بنديوانې را وګرزوم يعني دَ سدوم او دَ هغه دَ لونړو
بنديوانې ستا دَ بنديوانو بنديوانې دَ هغوي په منځ کښې ۵۴ تا چه ۵۴
ته خپله رسوائي وزغمې او له خپلو ټولو کارونو پښيمانه شې څکه
چه ته دَ هغوي دَ تسلي سبب يې ۵۵ او ستا خوئيندې سدوم او دَ ۵۵
هغې لونړه به وړاندِني حال ته وګرزي او سمرون او دَ هغې لونړه
به وړاندني حال ته وګرزي او ته او ستا لونړه به بيا وړاندِني
حال ته وګرزي ۵۶ تا دَ خپل فخر په ورځو کښې دَ خپلې خور سدوم ۵۶
نوم په ژبې هم نه آخستو ۵۷ له هغه وړاندِ چه ستا بدکارِي ۵۷
ښکاره شوله لکه چه دَ ملامتولو په وقت کښې چه دَ آرام لونړو او
هغوي ټولو چه دَ هغه په شا خوا وُو او دَ فلسطيانو لونړه له

۵۸ ځلورو خواؤ ستا سپکاوي کوِي ۵۹ خداوند وايي چه تا اوس دَ
۵۹ خپلي فاحشيِ او دَ پليتيِ اجر دِ موندلي ديَ خداوند وايي ۵۹ ځکه
چه خداوند يهوه وايي چه زه به له تا سره لکه چه تا کړِي دِي
۶۰ داسي وکړم ځکه چه تا قسم سپک وګاڼه او عهد دِ مات کړه ۶۰ په دِي
به هم زه هغه عهد چه ما ستا دَ جينکوالي په ورځو کښ له تا
۶۱ سره وکړ په ياد کړم او ابديِ عهد به له تا سره قايم کړم ۶۱ او هرکله
چه ته خپله مشره او خپله کشره خور قبولي کړي پس له هغه به ته
خپلي لاري په ياد کړي پښيمانه به شي او زه به هغوي وتاته درکړم
چه ستا لوڼړه شِي ليکن دغه به ستا دَ عهد په سبب نه وِي -
۶۲ ۶۲ او زه به خپل عهد له تا سره قايم کړم او نه به پوه شي
۶۳ چه زه خداوند يم ۶۳ تاچه ته به ياد کړي او پښيمان شي او دَ شرم
له سببَ خپله خُله بيا هيڅري نه پرانزي هرکله چه زه هرڅه
چه تاکړِي دِي معاف کړِي مِ دِي خداوند يهوه وايي ❊

# اوه لسم باب

۱ ۱ او دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئي ويل ۲ اي آدمزاده
۲ يو متل وکړه او دَ اسرائيل خاندان ته يو مثال ووايه او ورته
۳ ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي ۳ چه يو لوي ښجير چه لوي بازوګان
او لوي وزر ئي لرل زنګارنګ شوي لُبنان ته ورغي او دَ نښتر
۴ اوچت ښاخ ئي واخست ۴ او له ټولو سر نري ښاخ ئي پريکړ او دَ
سوداګريِ و مُلک ته ئي وروړ او هغه ئي دَ سوداګرانو په ښهر
۵ کښ ولګاوه ۵ او هغه له هغي زمکي تخم يووړ او په ښي زمکي
کښ ئي وکاره او هغه دَ ډيرو اوبو په غاړي لکه چه دَ ولي وني
۶ لګوِي و ئي لګاوه ۶ او هغه و ټوکيده او يوه وروکي قده ونه دَ
انګورو شوله چه لور په لور وغوړيدله او دَ هغي ښاخونه دَ

هغې په لوړې تېت وُو او دَ هغې ښخونه تر هغې لاندِ وې نو هغه
دَ انګور ونه شوه او ښاخونه ئې ووتل او دَ هغې ښائسته لښتې
لوې شولې ۷ او یو بل لوی تجیر وه چه لوې لوې وزر او ډېر پر ئې ۷
وُو او ګوره چه دې تاک خپلې جرې دَ هغه په لوړې وګرزولې خپل
ښاخونه ئې و ټوکول تاچه هغه دَې دَ خپل باغ په جړوکښ اوبه
کړي ۸ هغه دَ ډېرو اوبو په غاړې په ښه پټې کښ لګولې شوي وُو ۸
تاچه دَ هغه ښاخونه زرغونه شِي اوچه میوه ونیسِي تاچه ښه
دَ انګور ونه شِي ۹ نو ته ورته ووایه چه خداوند یهوه داسې ۹
وایِي هغه به خوشحاله شِي څه؟ دې به دَ هغې بېخ و نه کاږي
څه؟ او دَ هغې میوه به پرې نه کړي څه؟ چه هغه وچه شِي
او دَ هغې ټولې پاڼې دَ هغه چه ټوکیږِي مړاوې شِي او نه به هغه
په ډېر زور سره او نه به ئې په ډېرو خلقو سره دوباره له بېخَ وکاږي
۱۰ ګوره هغه خو لګولې شوې دَه لیکن تازه به شِي څه؟ او هرکله ۱۰
چه مشرقِي باد پرې ولګیږِي نو وچه به نه شِي څه؟ هغه به په
خپلو جړوکښ چه هلته ټوکیدلې وې مړاوې نه شِي څه؟
۱۱ او بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئې ویل ۱۱
چه ۱۲ ته هغه باغِي خاندان ته ووایه چه تاسې ددې خبرو په ۱۲
معنیٰ نه پوهیږِئ څه؟ بیا ورته ووایه چه ګوره دَ بابل بادشاه
اورشلیم ته راغې او دَ هغه بادشاه او دَ هغه شاهزادګان
ئې ونیول له خپل خان سره ئې و بابل ته بوتلل ۱۳ او هغه دَ ۱۳
بادشاهئِ له تخم نه یو ونیو او له هغه سره ئې وعده وکړه
او په قسم کښ ئې راوست او دَ ملک پهلوانان ئې هم بوتلل تا
۱۴ چه هغه سپک بادشاهت شِي داسې چه بیا پورته نه شِي ۱۴
مګر چه دَ هغه دَ وعدې په ساتلو مضبوط اوسِي ۱۵ مګر دغه ۱۵
باغِي شه او مصر ته ئې ایلچیان واستول چه ده له آسونه او

ډېر خلق ورکړي او هغه به کامياب شي څه؟ او هغه سړي چه
داسې کارونه کوي خلاص به شِي څه؟ هغه چه وعده ماته کړي
١٦ خلاص به شِي څه؟ ١٦ خداوند يهوه وايي چه ځما په خپل ژوند
قسم دَي چه په هغه مکان کښ چه دَ هغه بادشاه ميشتوکنه
ده هغه چه دي ئې بادشاه کړ چه دَده قسم ئې سپک وګاڼه او
چه دَ هغه وعده ئې ماته کړه هغه به په بابل کښ هغه ځخه
١٧ مړ شِي ١٧ او نه به فرعون له خپل لوي لښکره او له ډېرو خلقو
سره په جنګ کښ ورسره مدد وکړي هغه وقت چه مورچې تړي
١٨ او برجونه جوړوِي تا چه ډېر ځانونه هلاک کړي ١٨ ځکه چه هغه
قسم سپک وګاڼه او هغه وعده ئې ماته کړه ګوره هرکله چه ده
خپل لاس ورکړي وُه ده هغه ټول څه وکړل نو هم دي به خلاص
١٩ نه شِي ١٩ دي دَپارَ خداوند يهوه داسې وايي چه په خپل ژوند مِ
قسم دَي چه هغه ځما قسم چه ده سپک ګڼلي دَي او هغه ځما
٢٠ وعده چه ده ماته کړي دَه دَ هغو په سر به ئې ور وګرزوم ٢٠ او
زه به خپل جال په هغه وغوړوم او هغه به ځما په دام کښ ونيولي
شِي او زه به هغه و بابل ته راولم او دَ هغه ګناه په باب چه
ده ځما په خلاف کړي دَه زه به هلته کښ له هغه سره دعوي وکړم
٢١ ٢١ او دَ هغه ټول تښتيدونکي به دَ هغه له ټول لښکر سره په
توري پريوزي او هغوي چه پاتي شِي نو په هر باد به تار په تار
شِي او ته به و پوهيږي چه ما خداوند دا ويلي دِي
٢٢ ٢٢ خداوند يهوه داسې وايي چه زه به هم له بلند لمنځي
نه له ټولو اوچت ښاخ واخلم او هغه به ولګوم بيا به دَ هغه
له سره دَ نرمو ښاخونو يو پوست وکاږم او هغه به په يو اوچت
٢٣ او مشهور غره بانْدِ ولګوم ٢٣ زه به هغه دَ اسرائيل په اوچت
غره کښ ولګوم نو هغه به ښاخونه وټوکوي او ميوه به راوړي

او هغه به یو ښائسته لښته شي او ټول مرغان او مرغان به تر
هغه لاندې اوسي هغوي به دَ هغه دَ څانګو په سیوري کښې استوګنه
وکړي ۲۴ او ټولې وني دَ میدان به پوه شي چه ما خداوند لوړې ونې ۲۴
ټیټي کړي او ټیټي ونې مې بلندي کړي زرغونې ونې مې وچې کړي او وچې
ونې مې زرغونې کړي ما خداوند ویلي دي او هغه مې کړي دي ✣

# اتلسم باب

آ او دَ خداوند کلام بیا ما ته را ورسیده او وئې ویل ۲ چه تاسي ۲
دَ اسرائیل دَ ملک په حق کښې ولې دا متل کړئ وایئ چه پلرونو
نیکونو تاروه انګور وخوړل او غاښونه دَ ځامنو یې شول ۳ خداوند ۳
داسي وايي چه ځما پخپل ژوند قسم دئ چه تاسي به بیا په اسرائیل
کښې دا متل و نه وایئ ۴ ګوره ټول ځانونه ځما دي ګوره لکه ۴
چه دَ پلار ځان هم هسي دَ ځوي ځان دواړه ځما دي هغه ځان
چه ګناه کوي مړ به شي ۵ او هغه سړی چه صادق دئ او انصاف ۵
او راستي کوي هغه چه په غرونو کښې ئې خوړلي نه دي ۶ او دَ اسرائیل ۶
دَ کور بتانو ته ئې سترګې پورته کړي نه دي او دَ خپل ګاونډي ښځه
ئې ناپاکه کړې نه دَه او حیضي ښځي ته نژدې شوی نه دَی او په
هیچا ئې ظلم کړی نه دَی ۷ او دَ قرضدار ګروي ئې بیرته ورکړې دَه ۷
او په ظلم سره ئې هیڅ لوټ کړي نه دَي او په وږیو ئې خپله
ډوډۍ خوړولې دَه او برهنانو ته ئې جامې اغوندولې دي ۸ او هغه ۸
چه په سود ئې راکړه ورکړه کړې نه دي او له بدي ئې خپل لاس
رانیولی دَی او دَ سړیو په منځ کښې ئې رښتني انصاف کړی دَی
۹ او ځما په حکمونه تللی دي او ځما قانونونه ئې ساتلي دي چه ۹
په رښتنۍ عمل کوي هغه رښتنی دي خداوند یهوه وایي هغه به
بې شکه ژوندي وي ۱۰ لیکن که له هغه نه یو زوی پیدا شي چه ۱۰

۱۱ لاري وهي يا خوني وي ۱۱ او له هغو كارونو دَ يوه په شان كار
وكړي او له هغو نورو يو هم و نه كړي بلكه په غرونو ئې خوړلي
۱۲ دي او دَ خپل گوانډي ښځه ئې ناپاكه كړي ده ۱۲ په غريب او محتاج
ئې ظلم كړي دي شوكولي ئې دي گرو ئې بېرته وكړي نه دي او په
۱۳ بُتانو ئې سترگې پورته كړي دي او خبيث كارونه ئې كړي دي ۱۳ په
سود ئې وركړي دي سود ئې خوړلي دي نو هغه به ژوندي وي
څه؟ هغه به ژوندي نه وي هغه دا ټول نفرتي كارونه كړي دي
۱۴ هغه به په يقين سره مړ شي دَ هغه خون به په هغه وي ۱۴ بيا
كه له هغه نه يو زوي پيدا شي چه هغه ټول گناهونه چه دَ
هغه پلار كړي دي و ئې ويني او وېره وكړي او هم هغه شان كار
۱۵ نه كوي ۱۵ او په غرونو بانډې خوړلي نه دي او دَ اسرائيل دَ بُتانو
۱۶ په لوري ئې خپلې سترگې پورته كړي نه دي ۱۶ او دَ خپل گوانډي
ښځه ئې ناپاكه كړي نه ده او په هيڅ ئې ظلم كړي نه دي او گرو ئې
ايښي نه دي او په ظلم سره ئې شوكه كړي نه ده ليكن وږيو ته ئې
خپله ډوډۍ وركړي ده او برېنډانو ته ئې جامې وراغوستلي دي-
۱۷ ۱۷ له غريبانو لاس ئې اخستلي دي او سود او گټه ئې اخستلي
نه دي ليكن زما په حكمونو ئې عمل كړي دي او زما په قانونونو تللي
دي نو هغه به دَ خپل پلار دَ گناهونو دَ پاره مړ نه شي هغه
۱۸ به په يقين سره ژوندي اوسي ۱۸ دَ هغه پلار چه دي: دي دَ پاره
چه په بې رحمۍ سره ئې ظلم وكړ او خپل ورور ئې په ظلم سره ولوټه
او دَ خپلو خلقو په منځ كښې ئې داسې كار وكړ چه ښه نه وه گوره
۱۹ هغه به په خپلې بدكارۍ كښې مړ شي ۱۹ مگر تاسو وايئ چه ولې ځوي
دَ پلار بدي نه اخلي څه؟ نو هركله چه ځوي هغه چه انصاف
او رښتيني ده كړي ئې ده او زما حكمونو ئې ساتلي دي او عمل ئې
۲۰ پرې كړي دي نو هغه به په يقين سره ژوندي شي ۲۰ هغه ځان

چه گناه کوي هم هغه به مړ شي ځوي به دَ پلار بدکارۍ وانه خلي
او نه به پلار دَ زوي بدکارۍ واخلي دَ رښتني رښتنۍ به په هغه
باندِ وِي او دَ شرير شرارت به په هغه باندِ شي ۲۱ ليکن که شرير ۲۱
له خپلو ټولو خطاؤ چه ده کړې دي را وګرزي او ځما ټول حکمونه
وساتي او هغه چه انصاف او رښتيني دي هغه وکړي نو په يقين
سره به هغه ژوندي وِي مړ به نه وِي ۲۲ او دَ هغه ټول گناهونه ۲۲
چه ئې کړي دي دَ هغه ذکر به هم ونه شي او پخپلې رښتنۍ چه
ده کړي دَه ژوندي به وِي ۲۳ خداوند يهوه وائي چه ما لره خوښي ۲۳
دَه چه شرير مړ شي څه ؟ مګر چه هغه له خپلو لارو نه بېرته
را وګرزي او ژوندي شي ۲۴ بيا که رښتني له خپلې رښتنۍ وګرزي ۲۴
او بدي وکړي او دَ هغو ټولو پليتو کارونو په دود لکه چه
شرير ئې کوي و ئې کړي نو هغه به ژوندي شي څه ؟ دَ هغه ټوله
رښتني چه کړي ئې دَه ياده به نه شي هغه به پخپلو بديو کښ چه
ده وکړې او دَ هغه په خطاؤ کښ چه ده کړي دي هم په هغو
کښ به مړ شي ۲۵ په دې هم تاسي وائئ چه دَ خداوند لار برابره ۲۵
نه دَه اي دَ اسرائيل خاندانه واورئ ځما لار برابر نه دَه څه ؟
ستاسي لاري کړي نه دِي څه ؟ ۲۶ هرکله چه صادق له خپل ۲۶
صداقت نه وګرزي او بدکاري وکړي او په هغې کښ ومري نو
دَي به دَ هغې بدکارۍ په سبب چه ده کړي دَه مړ شي ۲۷ او بيا ۲۷
که شرير له خپل شرارت نه چه هغه کړي دَي را وګرزي او
هغه کار وکړي چه انصاف او رښتني دَي نو هغه به ځان
ژوندي وساتي ۲۸ ځکه چه ده فکر وکړ او له خپلو ټولو تقصيرونو ۲۸
چه ئې کړي دي را وګرزېده نو دَي به په يقين سره ژوندي وِي
او مړ به نه شي ۲۹ نو هم دَ اسرائيل خاندان وائي چه دَ خداوند ۲۹
لار برابره نه ده اي دَ اسرائيل خاندانه ځما لاري برابري نه دِي

٣٠ څه؟ ٣٠ پس خداوند يهوه وائي چه اي دَ اسرائيل خاندانه زه
به دَ هري يوي لاري په موافق ستاسي عدالت وکړم نو توبه وکړئ
او له خپلو ټولو تقصيرونو را وګرزئ تا چه بدکاري ستاسي
٣١ هلاکت نه شي ٣١ ټول تقصيرونه چه تاسي وکړل له ځانَ ئي لري
وغورزوئ او دَ ځان دپارَ يو نوي زړه او نوي روح پيدا کانړئ
٣٢ ولي تاسي اي دَ اسرائيل کوره څله به تاسي مړه شئ څکه چه
خداوند يهوه وائي چه زه دَ هغه په مرګ چه مري
نه خوښيږم نو را وګرزئ او ژوندي اوسي ❊

# نولسم باب

١ آ اوس ته دَ اسرائيل په رئيسانو وير کړه او ووايه چه ٢ ستا مور
څه وَه يوه زمريَ وه چه دَ زمريو په منځ کښي پرته وَه او دَ ځوانانو
٣ زمريو په منځ کښي ئي خپل بچي وپالل ٣ او هغي له بچيو خپلو
نه يو اکښي و ساته او هغه ځوان زمريَ شه او ښکار نيول ئي
٤ زده کړل او آدميان ئي خوړل ٤ او دَ قومونو په منځ کښي ئي شهرت
پيدا شه پس دَي دَ هغو په ډُغل کښي ونيوي شه او په کُندو
٥ ئي وتاړه دَ مصر وزمکي ته ئي راوست ٥ او هرکاه چه دي ئي وليد
چه صبر ئي وکړ او بيا چه دَ هغي اميد لاړ شه پس دَي له خپلو
٦ بچيو يو بل ونيو او هغه ئي وپاله ځوان زمريَ ئي کړ ٦ او هغه دَ
زمريو په منځ کښي په سيل سره ګرزيده او ځوان زمريَ شه او
٧ ښکار نيول ئي زده کړل او آدميان ئي خوړل ٧ او دَ هغو محلونه
ئي وپيژندل او دَ هغو ښهرونه ئي ويران کړل دَ هغه دَ غرمبهار
٨ آواز زمکه ويجاړه کړه او آبادي ئي ٨ نو له هر طرفه قومونه دَ
ښهرونو به هغه متفق شول او په هغه ئي خپل جال وغوړاوه
٩ او هغه دَ هغو په ډُغل کښي ونيوي شه ٩ او هغوي په کُنديدار

قفس کښې کیښود دَ بابل وبادشاه ته ئې حاضر کړ او قلا ته ئې
راوست تاچه دَ هغه آواز بیا دَ اسرائیل په غرونو کښې وا
نه وریدلی شي
۱۰ ۱۰ ستا مور دَ هغه تاک په طور وَه چه ستا په شان
اوبو څخه ولګولي شوه هغه دَ ډېرو اوبو په سبب میوه داره
۱۱ شوه ۱۱ او دَ هغي ډېر ښاخونه وشول او دَ هغي ښاخونه داسي
قوِي شول چه دَ بادشاهانو دَ امسا لایق ؤُو او دَ ګڼو ښاخونو
په منځ کښې دَ هغي قد بلند شه او هغه دَ خپلو ګڼو ښاخونو
۱۲ له ډولي سره اوچتَ ښکاره کیده ۱۲ لیکن هغه په غضب سره
وکښلي شوله په زمکه وغورزولي شوه او مشرقي باد ئې میوي
وچي کړي او دَ هغي محکم ښاخونه ئې مات کړل اووچ شول اور
۱۳ وخوړل ۱۳ او اوس هغه په بیابان کښې په یږي وچي او تږي زمکي
۱۴ کښې ولګولي شوه ۱۴ او له یوي لښتي نه دَ هغي دَ ښاخونو اور
ووت دَ هغه میوه ئې خوړلي دَه او داسي هیڅ غټ ښاخ په کښې
نه شه چه دَ بادشاهت دَ امسا لایق شي دا یو ویر دَي او دَ ویر
دَپارَ به وِي ❊

# شلم باب

۱ ۱ او دَ اووم کال دَ پنځمي میاشتي په لسم تاریخ داسي وشول چه
څو سپین ږیري دَ اسرائیل وخداوند ته دَ څه پوښتني دَپارَ
۲ ورغلل او زما په مخ کښې کښیناستل ۲ نو دَ خداوند کلام ما ته
۳ راورسیده او وئې ویل ۳ چه اي آدمزاده دَ اسرائیل له سپین ږیرو
سره خبره وکړه او ورته ووایه چه خداوند یهوه داسي وائي ما ته
دَ پوښتني دَپارَ راغلي یئ څه ؟ خداوند یهوه وائي چه لکه چه
۴ زه حَي یم زه به له تاسي وپوښتیدلي نه شم ۴ ته به دَ هغو
عدالت وکړي څه ؟ اي آدمزاده ته به دَ هغو عدالت وکړي څه ؟

دَ هغو دَ پلرونو او دَ نيکونو له نفرتي کارونو هغوي خبر کړه ۔
٥ ۵ او هغو ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي چه هغه
ورځ چه ما اسرائيل غوره کړ نو ما دَ يعقوب دَ کور په اولاد
لاس پورته کړ او دَ مصر په زمکي کښ مِ ځپل ځان په
هغو ظاهر کړ ما په هغو لاس پورته کړ او ورته و مِ ويل
٦ چه زه خداوند ستاسي الله يم ۶ هغه ورځ چه ما ځپل لاس
په هغو پورته کړ چه هغوي دَ مصر له زمکي نه و هغي زمکي
ته راولم چه ما دَ هغو دَپارَ ځارلي وه چه هلته کښ پيِ او شهد
٧ بهيږي او هغه دَ ټولو ملکونو فخر دَه ۷ او ما هغوي ته وويل
چه له تاسي نه دِ هر يو سړي هغه دَ ستړکو نفرتي ځيزونه
وغورزوي او تاسي ځپل ځانونه دَ مصر له بُتانو مه ناپاک کويِ
٨ زه خداوند ستاسي الله يم ۸ ليکن هغوي له ما نه باغيان شول
او نه ئي غوښتل چه ځما واوري له هغوي نه هيچا هغه دَده دَ
ستړکو نفرتي ځيزونه ترک نه کړل او دَ مصر بُتان ئي پري نښودل
نو ما وويل چه زه به ځپل قهر په هغوي نوي کړم او ځپل
٩ ټول غضب به دَ مصر په زمکي کښ په هغوي تمام کړم ۹ ليکن
دَ ځپل نُوم دَپارَ م داسي وکړل تاچه ځما نُوم دَ هغو قومونو دَ
ستړکو دَ ورانِد چه دَ هغو په منځ کښ دوي اوسِي او چه دَهغو
په نظر کښ مِ ځپل ځان په هغو ظاهر کړ هغه وقت چه هغوي
١٠ مِ دَ مصر له زمکي راويستل ناپاک نه شِي ۱۰ نو ما هغوي دَ
١١ مصر له زمکي نه راويستل او بيابان ته مِ راوستل ۱۱ او ما
ځپل حکمونه هغوي ته ورکړل او ځپل عدالتونه مِ هغوي ته
وربښکاره کړل چه که په هغو سړي عمل وکړِي نو په هغو سره
١٢ به ژوندي وِي ۱۲ او ما هغوي ته ځپل سبتونه هم ورکړل چه
ځما او دَ هغوي په منځ کښ نښنه وِي تاچه هغوي وپوهيږي

۱۳ چه زه خداوند دَ هغو پاک کونکي یم ۱۳ لیکن دَ اسرائیل کور په
بیابان کښې له مانه باغي شه او ځما په حکمونو نه تـه او ځما عدالتونه
ئې رد کړل چه که سړی په هغو عمل وکړي نو هم په هغو به ژوندي
وي او هغوي به ځما سبتونه نهایت ناپاک کړل نو ما وویل چه زه
په بیابان کښې خپل قهر په هغوي توی کړم چه فنا ئې کړم -
۱۴ ۱۴ لیکن ما دَ خپل نوم دَپاره داسې وکړل تا چه هغه دَ هغو قومونو
په حضور چه دَ هغوي دَ سترګو دَ وړاندې مې باهر راوستل ناپاک
۱۵ نه شي ۱۵ او ما هم په بیابان کښې خپل لاس په هغو پورته کړ چه
زه به هغوي و هغې زمکې ته رانه ولم چه ما هغوي ته ورکړه چه
په هغې کښې شهد او شوده بهیږي او چه دَ ټولو زمکو فخر
۱۶ دَه ۱۶ ځکه چه هغوي ځما عدالتونه رد کړل او ځما په حکمونو
نه تلل او ځما سبتونه ئې ناپاک کړل چه دَ هغو زړونه پخپلو بتانو
۱۷ پسې تلل ۱۷ په دې هم ځما سترګو په هغو رحم وکړ هغوي مې
۱۸ هلاک نه کړل او په بیابان کښې مې پوره تمام نه کړل ۱۸ او ما په
بیابان کښې دَ هغو زامنو ته وویل چه تاسې دَ خپلو پلرونو په
لارو مه ځئ او دَ هغو عدالتونه مه ساتئ او دَ هغو په بتانو
۱۹ خپل ځانونه مه ناپاک کوئ ۱۹ زه خداوند ستاسې الله یم ځما
۲۰ په حکمونو ځئ او ځما عدالتونه ساتئ او عمل پرې کوئ ۲۰ او ځما سبتونه
پاکوئ چه هغوي ځما او ستاسې په منځ کښې نخښه وي تا چه
۲۱ تاسې پوه شئ چه زه خداوند ستاسې الله یم ۲۱ لیکن هغه
زامن هم له مانه باغیان شول هغوي ځما په حکمونو نه تلل او
ځما عدالتونه ئې نه ساتل چه عمل پرې وکړي چه په هغو که سړی
عمل وکړي نو په کښې به ژوندي وي او هغوي ځما سبتونه ناپاک
کړل نو ما وویل چه زه به خپل قهر په دوي توی کړم او په
۲۲ بیابان کښې به خپل ټول غضب په هغوي تمام کړم ۲۲ او سره له

دي ما خپل لاس را وښکاوه او دَ خپل نُوم دَپارَ مِ داسي کار
وکړ تاچه هغه دَ هغو قومونو په حضور کښ چه دَ هغوي دَ
۲۳ نظر دَ وړاندِ مِ باهر راويستلي وُو ناپاک کړي نه شِي ۲۳ بيا
مِ په بيابان کښ په هغوي خپل لاس پورته کړ تاچه زه دوي
په قومونو کښ تار په تار کړم او په ملکونو کښ ئي پراګنده کړم
۲۴ ۲۴ دي دَپارَ چه هغوي ځما په عدالتونو عمل کړي نه وه بلکه ځما
قانونو نه ئي ردّ کړي وُو او ځما سبّتونه ئي ناپاک کړي وُو او دَ
۲۵ هغو سترګي دَ خپلو پلرونو په بتانو پسي وي ۲۵ پس ما هغو
۲۶ ته هغه حکمونه ورکړل چه ښه نه وُو ۲۶ او هغه عدالتونه چه
په هغوي سره ژوندي نه شِي او ما هغوي دَ هغو په پيښکښيو
سره چه هغوي به ټول مشران هلکان راوستل چه په اورکښ
ئي وګذاروِي ناپاک کړل تاچه زه هغوي نيست کړم او هغوي
وپوهيږي چه خداوند زه يم
۲۷ ۲۷ دي دَپارَ اي آدمزاده ته دَ اسرائيل له کورني سره خبري
وکړه او ورته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايِي چه بغير له
دي نه ستاسي پلرونو په ما کفر ويلي دي او ځما خيانت ئي وکړه
۲۸ ۲۸ هرکله چه ما هغوي وهغه ملک ته راوستل چه دَ هغه په
ورکولو مِ خپل لاس پورته کړ پس دوي هر يو اوچت غر او
ټولي ګڼي وني وليدي او هلته ئي خپلي ذبحي ذبحه کړي او هلته
کښ ئي دَ خپل غضب نذرونه پيش کړل او هلته کښ ئي خپلي
۲۹ خوشبوئِي باندي کړي او هلته کښ ئي خپلي تويونکي نوي کړي ۲۹ نو
ما هغوي ته وويل چه دا څرنګ اوچت مکان دَي چه تاسي ورځِي
۳۰ او هغوي دَ هغه نُوم بام کيښود چه ترننِ ورځي پوري دَي ۳۰ دي
دَپارَ ته دَ اسرائيل کور ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايِي
چه تاسي هم دَ خپلو پلرونو په لاري ځانونه ناپاکوئِ او دَ هغو

۳۱ مکروهاتو پسي زناکارِي کوئ ۳۱ څکه چه هرکله چه تاسي خپلي
هديې باندي کوئ او خپل ځامن راولئ چه هغوي په اور کښ تير
کړئ تاسي په ټولو خپلو بُتانو ترَ دي ورځي پوري خپل ځانونه
ناپاک کوئ نو اي دَ اسرائيل کوره زه به له تاسي نه وپښتيدلي
شم څه ؟ خداوند يهوه واېي لکه چه زه حَي يم زه به له تاسي
۳۲ وپښتيدلي نه شم ۳۲ او هغه چه ستاسي په زړه کښ راځي چه
تاسي وايئ چه مونږ به دَ غير قومونو په دود شُو او دَ ملکونو
دَ خيلخانو په شان به لرګيو او کاڼيو ته عبادت کوو نو دا به
۳۳ هرګز و نه شي ۳۳ خداوند يهوه واېي لکه چه زه حَي يم زه
به په زوراور لاس او په غزولي بازو او په توي کړي غضب سره
۳۴ په تاسي بادشاهت وکړم ۳۴ او زه به په زوراور لاس او په
غزولي بازو او په توي کړي قهر تاسي له قومونو باهر راوباسم
او له هغو ملکونو نه چه تاسي په کښ پراګنده شوي يئ راټول
۳۵ به مو کړم ۳۵ او زه به تاسي دَ قومونو په بيابان کښ راولم او
۳۶ روبرو به مباحثه درسره وکړم ۳۶ لکه چه ما ستاسي له پلرونو
سره دَ مصر دَ مُلک په بيابان کښ مباحثه وکړه خداوند يهوه
۳۷ واېي هم هسي به له تاسي سره مباحثه وکړم ۳۷ او زه به تاسي
تر کوتک دَ لاندي راوباسم او تاسي به دَ وعدي په غوټو کښ
۳۸ راورم ۳۸ او زه به له تاسي نه هغه خلق چه ياغيان دي او چه
له ما نه تقصيروار دي جدا کړم زه به هغوي له هغه مُلک نه چه
دوي استوګنه په کښ وکړه راوباسم ليکن هغوي به دَ اسرائيل
و ملک ته رانه شي تاچه تاسي و پوهيږئ چه زه خداوند يم -
۳۹ ۳۹ او تاسي چه دَ اسرائيل کور يئ خداوند يهوه داسي واېي لاړ
شئ او هر يو دَ خپلو بُتانو خدمت وکړئ او پس له دي نه که
تاسي مِ وانه ورئ ليکن تاسي له خپلو قربانيو او له خپلو بُتانو

۴۰ نه ځما پاک نُوم به بیا نه ناپاکوئِ ۴۰ ځکه چه خداوند یهوه وائِي
چه ځما په پاک غره باندِ دَ اسرائیل تمام کور چه په ملک کښ
دي ځما عبادت به وکړِي هو زه به هلته هغوي قبول کړم
او هلته کښ به زه ستاسي پورته کړي قربانئِ او ستاسي دَ
پیشکښئِ وړنبئِ میوي او ستاسي پاک څیزونه به طلب کړم
۴۱ ۴۱ هرکله چه زه تاسي له قومونو راوباسم او له هغو ملکونو
مو راټول کړم چه تاسي په کښ پراګنده شوِي یئِ نو به زه تاسي
دَ خوشبوئِ په دود قبول کړم او دَ غیر قومونو دَ نظر دَ وړاندِ
۴۲ به تاسي ځما پاکي وکړئِ ۴۲ او هرکله چه زه تاسي دَ اسرائیل
په مُلک کښ په هغي زمکي کښ چه دَ هغي په باب ما ستاسي
پلرونو ته لاس پورته کړ چه هغوي ته ئي ورکړم راولم نو
۴۳ تاسي به پوه شئِ چه زه خداوند یم ۴۳ او هلته کښ به تاسي
خپلي لاري او خپل ټول کارونه چه له هغو نه تاسي ناپاک شوِي
یئِ یاد کړئِ او تاسي به دَ خپلو ټولو بدکاریو په سبب چه تاسي
۴۴ کړِي دِي خپل ځانونه په نظر کښ پلیت وګڼئِ ۴۴ نو تاسي به
پوه شئِ چه زه خداوند یم هرکله چه ما دَ خپل نُوم په خاطر
تاسي سره کړِي دِي نه لکه ستاسي بدي لاري نه لکه ستاسي
خراب عملونه اي دَ اسرائیل کوره خداوند یهوه وائِي
۴۵ ۴۵ او بیا دَ خداوند کلام ما ته راورسیده او وئي ویل
۴۶ ۴۶ چه اي آدمزاده خپل مخ دَ جنوب په لوري کړه او دَ شمال په
۴۷ لوري خبري وکړه او دَ جنوب دَ ځنګل په لوري نبوّت وکړه ۴۷ او دَ
جنوب و ځنګل ته ووایه چه دَ خداوند کلام واوره خداوند
یهوه داسي فرمائِي چه ګوره زه به په تا کښ یو اور بل کړم او
هغه به هره یوه شنه ونه او هر یوه وچه ونه چه په تا کښ
دِي وسیځِي دَ هغه بلیدونکي اور لمبه به مړه نه شِي او له جنوب

٤٨ به تر شمالَ پوري دَ ټولو مخونه په هغه وسيځلي شي ٤٨ او
ټول بشر به وپوهيږي چه ما خداوند هغه بل کړ او مړ
٤٩ به نه شي ٤٩ نو ما وويل چه هئ هائ خداوند يهوه هغوي
خو خما په باب وايي هغه مثالونه نه وايي څه ؟ *

# يو ويشتم باب

١ ٢ آ نو دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئي ويل ٢ چه اي
آدمزاده ته دَ اورشليم په لوري خپل مخ کړه او دَ پاکو مکانو
کلام وڅڅوه او دَ اسرائيل دَ زمکي په مخالفت نبوت وکړه او دَ
٣ اسرائيل زمکي ته ووايه ٣ چه خداوند داسي فرمايي چه گوره زه
ستا مخالف يم او خپله توره به له تيکي راوباسم او صادقان
٤ او بدکاران به له تانه پريکړم ٤ نو دي دپارَ چه زه به له تانه
صادقان او بدکاران پريکړم نو دي دپارَ به خما توره له خپل تيکي
٥ وخيژي له جنوب نه تر شمال پوري به په ټول بشر ٥ او ټول بشر
به وپوهيږي چه ما خداوند خپله توره له تيکي يستلي ده او
٦ هغه به بيا په ستنه نه شي ٦ نو اي آدمزاده ته دَ ملا له ماتيدلو
٧ آهونه کوه او دَ هغو دَ سترگو دَ وړاندِ ساړه اسويلي کوه ٧ او
داسي به وشي چه هرکله چه هغوي تاته ووايي چه ته ولي آهونه
کوي نو ته به ووايي چه دَ هغي خبري دپارَ څکه چه هغه راځي
او هر يو زړه به ويلي شي او ټول لاسونه به سست شي او
ټول ارواحونو به ضعيف شي او ټول زنگنو به لکه اوبو شي
خداوند يهوه وايي گوره دا راځي او وبه شي
٨ ٩ بيا دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئي ويل ٩ چه
اي آدمزاده نبوّت وکړه او وايه چه خداوند يهوه داسي وايي
چه ته ووايه چه يوه توره يوه توره شوي هغه تيره کړي شوي

۱۰ ده او صیقل کړې شوې هم دَه ۱۰ هغه تیره کړې شوې دَه تاچه ډیره
خونریزي وکړي هغه صیقل شوې دَه تاچه د بریښي نو موږ د
۱۱ خوښ شو څه ؟ څما دَ څوي ممسالکه هري ولي سپکه کړي ۱۱ او
هغه دَ صیقل کولو دَپارَ ورکړې شوې ده تاچه هغه په لاس
کښ وچلولي شي هغه تُوره تیره او په صیقل کړلي شوه تاچه
۱۲ دَ قتل کونکي په لاس ورکړي شي ۱۲ اي آدمزاده ته ناري او
هي هائ کوه چه هغه به څما په خلقو وي هغه به دَ اسرائیل
په ټولو رئیسانو دِي هغوي به څما له خلقو سره و تُوري ته
۱۳ وسپارلي شي دي دَپارَ ته خپل لاس په ورانه ووهه ۱۳ ځکه
چه یو ازمایښت دَي او څه به وي که هغه سپکه کړي شوي
۱۴ ممسا هم نه وِي خداوند یهوه وايي ۱۴ او اي آدمزاده ته نبوّت
وکړه او لاسونه ووهه او تُوره به دریم وار دوه کونه جوړه
شي هغه تُوره دَ وژلو هغه یوه تُوره دَه چه دَ عظمتونو خون ئي
۱۵ کړي دي او چه دَ هغوي په پردو کښ ننه وُځي ۱۵ ما دا تُوره وکښلي
دَ هغو ټولو په زړونو ییښي دَه تاچه دَ هغوي زړونه ویلي شي او
دَ هغو په ټولو دروازو کښ به هلاکت زیات وي هي هائ دا
۱۶ وبریښیدله دَ هغو دَ قتل کولو دَپارَ وکښلي شوه ۱۶ یو ځاي شي
په ښي او په کینړ طرف لاړ شي په هر لوري چه ستاسي مخ شي
۱۷ ۱۷ او زه به هم لاسونه ووهم او خپل قهر به په قرار کړم ما خداوند
دا ویلي دِي
۱۸ ۱۹ ۱۸ او بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئي ویل ۱۹ چه
اي آدمزاده ته دَ خپل ځان دَپارَ دوه لاري مقرّري کړه چه په هغو
کښ دَ بابل دَ بادشاه تُوري راشي هم له یوه ملک به هغه دواړه
راووزي او یو ځاي دَ نښان دَپارَ غوره کړه دَ ښهر دَ لاري په
۲۰ سري ئي غوره کړه ۲۰ یوه لار مقرّر کړه چه په هغي کښ تُوره دَ

بنيعمون په رباټ راشي او دَ يهوداه په قلادار اورشليم ښهر
۲۱ راشي ۲۱ چه دَ بابل بادشاه به په ښغي لوي لارې چه هلته
کښ دَ دوه هغو لارو سر دي ولاړ وه چه فال اچوي او غشي
۲۲ ئي وخلقاوه له ترافيم ني سوال وکړ جګر ته ئي وکتل ۲۲ دَ هغه
به ښي لاس دَ اورشليم فال وه چه منجنيق ولګوي چه ناره
دَ جنګ دَ وژلو دَپارَ او په چيغو چيغو سره ئحپل آواز اوچت
کړي او منجنيق به دروازو ولګوي چه مورچه وتړي او برج جوړ
۲۳ کړي ۲۳ ليکن دَ هغو په نظر کښ به دا داسې وي لکه دَ دروغ
فال يعني دَ هغو دَپارَ چه دوي ته ئي قسمونه کول ليکن دي به
دَ هغوي بدي په ياد کړي چه هغوي ونيولي شي
۲۴ ۲۴ دي دَپارَ خداوند يهوه داسې وايي چه ګرکه تاسي
خپله بدکاري په ياد کړي دَه تاچه ستاسي نافرماني ښرکنده شي
ئر دي پوري چه ستاسي په ټولو کارونو ستاسي خطايي ښکاره
کيږي هو ستاسي دَ يادولو په سبب به په لاس کښ ګرفتار
۲۵ کړي شئ ۲۵ او ته اي ژوبل شوي شريرَ دَ اسرائيل رئيسَ ستا
۲۶ دَ بدکاريِ ورځ وانجام ته رسيدلي دَه ۲۶ خداوند يهوه داسې
فرمايي چه پګ لري کړه او تاج يوسه دا به دا هسي نه وي چه
۲۷ ټيټ بلند کړه او هغه چه بلند دَي ټيټ کړه ۲۷ زه به هغه واړوم
واړوم واړوم دا به بيا نه وي ئر هغه چه حق ئي دَي راشي نو زه به
ئي هغه له ورکړم
۲۸ ۲۸ او ته اي آدمزاده نبوّت وکړه او وايه چه خداوند يهوه
دَ بنيعمون او دَ هغو دَ ملامت په باب داسې فرمايي چه ته
ووايه چه توره وکښلي توره هغه دَ خونريزيِ دَپارَ په صيقل
۲۹ کړي شوي دَه تاچه برېښ وکړي او خرابي وکړي ۲۹ تر هغه پوري
چه هغوي ستا دَپارَ بطلان ووينې. او هغوي تا ته دَ دروغو فال

واچوِي تاچه تا لره دَ شريرانو دَ وژليو په غاړو كيږدِي چه دَ
هغه دَ شرارت ورځ په انجام را ورسيده هغه بيا په تيكي كښ
۳۰ واچوه ۳۰ زه به ستا دَ پيدايښت په مكان كښ او ستا دَ
زيږيدلو په زمكه كښ ستا عدالت وكړم او زه به خپل قهر په
۳۱ تا نوي كړم ۳۱ او دَ خپل غضب په اور به درپو كړم او تا به
دَ حيوانانو سړو په لاس چه په برباد كولو كښ چالاک دِي وركړم
۳۲ ۳۲ ته به دَ اور دَپاره بالن شي او ستا وينې به دَ زمكي په منځ كښ
وِي او ستا ذكر به بيا ونه شي ځكه چه ما خداوند ويلي دِي ✣

# دوه ويشتم باب

۲ ۱ او بيا دَ خداوند كلام ماته را ورسيده او وئ ويل ۲ چه
اوس به اي آدمزاده ته حكم وركړي څه؟ ته به دي خوني ښهر
ته حكم وكړي څه؟ ته هغه ته دَ هغه ټول نفرتي كارونه ورښيه
۳ ۳ او ورته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي چه اي هغه
ښهرَ چه په تا كښ خونريزي اوسي او ته دَ خپل ځان دَ ناپاک
۴ كولو دَپاره بُتان جوړوي تاچه ستا وقت راشي ۴ ته دَ هغو
وينو په سبب چه تا وبهولي گنهگار شوي او ته دَ بُتانو په
سبب چه تا جوړ كړي دِي ناپاک شوي ته خپلي ورځي نژدي راولي
او تر خپلو كالونو پوري ورسيدي دي دَپاره مِ ته دَ قومونو ملامتيا
۵ او دَ ملكونو مسخره كړلي ۵ هغه خلق چه تا ته نژدي دِي او هغوي
چه له تا نه لري دِي په تا به ټوقي وكړي اي ته چه له بدئ او
۶ له فساده ډک يي ۶ گوره دَ اسرائيل شاهزادگان ټول چه په
تا كښ دِي هر يو دَ خپل وس په قدر وخون كولو ته تيار دِي
۷ ۷ ستا په منځ كښ =ا= مسافرانو ظلم كړي دئ هغوي په تا كښ
۸ كُنډو او يتيمانو ته ربړ وركړي دَي ۸ تا څما مقدّس سپک گڼړلي

=ا= هغوي مور او پلار سپک گڼړلي دي او هغوي ستا په مينځ كښ پر

۹ دَي او ځما سبّتونه مو پليت کړِي دِي ۹ ستا په منځ کښ هغه
خلق دَي چه دَ وينو بهولو دَپاره چغلي خورِي او ستا په منځ کښ
هغه دِي چه په غرونو باندِ خوراک کوِي ستا په منځ کښ هغه
۱۰ دِي چه فسق کوِي ۱۰ هغوي ستا په منځ کښ دَ خپلو پلارونو پردي
ښيري کړِي دِي ستا په منځ کښ هغوي له هغي ښځي سره چه
۱۱ له حيض بيله شوي وه زورلي دَه ۱۱ او چا دَ خپل ګاونډِي له
ښځي سره بدکاري کړِي دَه او بل دَ خپلي ښځي لور په فسق سره
پليته کړِي دَه او چا خپله خور دَ خپل پلار لوُر ستا په منځ کښ
۱۲ زورلي دَه ۱۲ ستا په منځ کښ هغوي رشوت اخستي دَي تا چه
خون وکړ شِي تا دا ګټه اخستي دَه او په ظلم او په حرص سره دَ
خپل ګاونډي لوټلي دَي او زه دِ هير کړم خداوند يهوه وايِي –
۱۳ ۱۳ ګوره ما ستا دَ ناروا فائدي دَپاره چه تا کړِي دَه او ستا دَ
خونريزِيِ په سبب چه ستا په منځ کښ شوِي دِي ما خپل لاس په
۱۴ لاس وهلي دَي ۱۴ ستا زړه به ټينګ شِي څه ؟ او ستا په لاسونو
کښ به زور پاتي شِي څه ؟ په هغو ورځو کښ چه زه ستا سره
۱۵ معامله کوم ما خداوند ويلي دِي او هم زه به ئِ وکړم ۱۵ او
زه به دِ به قومونو کښ تار په تار کړم او په ملکونو کښ به دِ
۱۶ پراګنده کړم او ستا ګند چه په تا کښ دَي و به ئِ سيځم ۱۶ او
دَ قومونو دَ نظر دَ وړاندِ به پخپله ناپاکه مقرّره شي او ته به
معلوم کړِي چه زه خداوند يم

۱۷ ۱۸ ۱۷ او دَ خداوند کلام ما ته راورسيده او وئي ويل ۱۸ چه
اي آدم‌زاده اسرائيل ځما دَپاره خِيري شوي دَي هغوي ټول زيړ
او قلعِي او اوسپنه او جَسَت دِي چه دَ تناره په مينځ کښ دِي
۱۵ هغوِي داسي دِي لکه چه دَ سپينو زرو خِيري وِي ۱۹ ځکه خداوند
يهوه داسي وايِي چه دي دَپاره چه تاسي ټول خِيري شوي يِئ

۲۰ نو اوس کورئ زه به تاسي دَ اورشليم په منځ کښ جمع کړم ۲۰ لکه
چه خلق دَ تناره په منځ کښ سپين زر او زير او اوسپنه
او جَس او قلعي جمع کوي او په هغو باندِ اور پوک کوي تا چه
ويلي ئي کړي هم هسي به زه په خپل قهر او په خپل غضب کښ
۲۱ تاسي جمع کړم او هسي به مو کيږدم او ويلي به مو کړم ۲۱ هو
زه به تاسي يو ځاي کړم او دَ خپل غضب اور به په تاسي پوک
۲۲ کړم او تاسي به په هغه کښ ويلي شئِ ۲۲ لکه چه سپين زر
په تناره کښ ويلي کيږي هم هسي به تاسي دَ هغه په منځ کښ
ويلي کړي شئِ او تاسي به و پوهيږئِ چه ما خداوند خپل غضب
په تاسي توي کړي دَي
۲۳ ۲۴ ۲۳ او دَ خداوند کلام ما ته راورسيده او وَئي ويل ۲۴ چه
اي آدم زاده هغي ته ووايه چه ته هغه زمکه يِي چه صافه کړي
شوي نه دَه اوچه په هغي باندِ دَ قهر په ورځي باران شوي
۲۵ نه دَي ۲۵ دَ هغي په منځ کښ دَ هغي نبيان فتنه دِي هغوي دَ هغه
ببر زمري په دود دِي چه غړنبيږي او ښکار څيري کوي هغوي
ځانونه خوړلي دِي هغوي مال او قيمتي څيزونه اخلي هغوي دَ
۲۶ هغه په منځ کښ ډيري کنډي کړي دِي ۲۶ دَ هغه کاهنانو زما
له تورِيتَ مخالفت کړي دَي او زما پاک څيزونه ئي نجس کړي دِي
هغوي په پاک او په ناپاک کښ فرق کړي نه دَي هغوي دَ نجس
او دَ طاهر تميز کړي نه دَي هغوي خپلي سترګي زما له سبتونو
۲۷ پټي کړي دِي او زه به هغو کښ ناپاک شوي يم ۲۷ دَ هغه
شاهزادګان دَ هغه په منځ کښ دَ ښکاري څيرونکيو ليوانو په
دود دِي چه خونريزي کوي او ځانونه هلاک کوي تا چه ناروا
۲۸ نفع وګټي ۲۸ دَ هغو نبيان هغو لره ناکاره خټه کړي دَه دَ
بطلان ليدونکي دوي لره او دَ دروغو فال اچونکي دي وايي چه

خداوند يهوه داسي وايي او سره له دي چه خداوند ويلي نه دي
۲۹ ۲۹ دَ هغه ملک دِير خلق ظلم کوي او په زور اخستل کوي او
غريبانان او محتاجان ئي آزارولي دِي او په بيگانهٔ ئي ناحق ظلم
۳۰ کړي دَي ۳۰ ما دَ هغو په منځ کښ يو سړيَ ولټاوه چه ديوار جوړ
کړي او دَ هغي رخنې دَپاره دَ هغي په کنډو کښ ځما په مخ کښ
ودريږي تا چه زه هغه ويران نه کړم ليکن هيڅوک مِ بيا نه موند
۳۱ ۳۱ له دي سببَ ما خپل قهر په هغو توي کړي دَي او دَ خپل
غضب په اور سره مِ هغوي فنا کړي دِي او ما دَ هغو دَ لاري انجام
دَ هغو په سرونو ور غورزولي دَي خداوند يهوه وايي ٭

# دروېشتم باب

۱، ۲ ۱ او بيا دَ خداوند کلام ما ته را ورسيده او وئي ويل ۲ چه اي
۳ آدم زاده دوي ښځي وي چه دَ يوي مور لونړه وي ۳ هغوي په مصر
کښ زنا وکړه او پخپلي ځوانئِ کښ ئي زنا کوله او هلته کښ ئي تي
ومښلي شول او هلته کښ ئي له پيغلتا نه تِي ښکيمندلي شول
۴ ۴ او په هغو کښ دَ لوي نوم آهوله او دَ هغي خور اهوليبه او هغوي
ځما ښځي شولي او زامن او لونړه ئي وشول دَ هغو نومونه اهوله
۵ سمرون دَي او اورشليم اهوليبه دَي ۵ او اهولي په هغو ورځو
کښ چه ځما وه کنچنيتوب ئي شروع کړ او پخپلو يارانو يعني په
اسوريانو چه گاونډيان ئي وو عاشقه شوه چه هغوي سردَلښکر
او حاکمان وُو او ټول سره دلپسند ځوانړد او سواره وُو چه په
۷ آسونو سواره وُو او ارغواني پوشاکونه ئي اغوستلي وُو ۷ په دي طَور
سره له هغوي ټولو سره چه دَ آسور غوره ځوانان وُو زنا ئي وکړه
او دي له هغو ټولو سره چه دا پرِ مينه وَه عشقبازِي ئي کوله
۸ او دَ هغوي ټولو بُتانو ئي خپل ځان پليت کړ ۸ دَي هرگز هغه

زناکارِي چه په مصر کښ کړي وَه پرې نه ښوده ځکه چه هغوي دَ
په ځوانئِ کښ صحبت ورسره کړي وه هغوي دَدي دَ پيغلتانه تي
۹ مرِلي وُو او خپله زنائي په دي تويې کړله ۹ دي دَپاره ما دا ددي
دَ يارانو په لاس کښ هو دَ اسوريانو په لاس کښ چه په هغوي
۱۰ عاشقه کيدله حواله کړه ۱۰ هغوي دا بې پردي کړه دَدي زامن او لونړه
ئې رانيول او دا ئي په توري سره کړه نو دا دَ ښځو په منځ کښ عبرت
۱۱ شوله ځکه چه هغوي په دي حکم وکړ ۱۱ او ددي خور اهوليبي
دا هرڅه وليدل ليکن دا په خپل عشق کښ له هغي بدتره شوه
۱۲ او دَي دَ خپلي خور له زناکارِئ نه زياته زناکارِي وکړه ۱۲ هغه په
بنِي اسور يعني دَ هغه په سردارانو او په حاکمانو چه دَدي گوانډيان
وُو چه شاندار پوشاک به ئي آغوست او په آسونو به سواره کيدل
۱۳ او ټول سره دلپسند ځوانان وُو عاشقه شوله ۱۳ او ما وليده چه
۱۴ هغه هم ناپاکه شوه او دَ هغو دواړو يوه لار وه ۱۴ بلکه له هغي
ئې زياته زناکارِي وکړه ځکه هرکله چه دَي په ديوال باندِ دَ سړيو
صورتونه وليدل دَ کِسديانو صورتونه چه په شنګرفو ځکولي وُو
۱۵ ۱۵ او چه ملا ئي په کمربندونو تړلي وي او په سرونو باندي ئي
ښي رنګينه پګړئ وي او چه ټول به ليدلو کښ دَ لښکر شاهزادګان
دِي او دَ بابل له زامنو سره همشکله چه دَ هغو دَ پيدايښت
۱۶ وطن کسدستان دَي ۱۶ نو چه دَي هغوي په سترګو وليدل نو ورباندِ
عاشقه شوه او قاصدان ئي دَ کِسديانو په ملک کښ هغوي ته
۱۷ ور واستول ۱۷ نو دَ بابل زامن هغي ته ورغلل دَ عشق به بچاونړي
ورغلل او هغوي په خپلو زناکاريو سره ئي ناپاکه کړه او دا ورسره
۱۸ پليته شوله او ځان ئي ورنه وکرزيدلي شه ۱۸ پس دَ هغي
زناکارِي ښکاره شوه او دَدي برښنډوالي بي ستره شه نو لکه
چه زما زړه دَ هغي له خور نه کرزيدلي وه هم هسي زما زړه

له دغې هم وګرزېده ۱۹ نو په دې هم هغې دَخپلې ځوانۍ ورځې ۱۹
په یادې کړې چه دې دَ مصر په زمکې کښې کنچنیوب کاوه په
زناکارۍ ئې زناکارۍ وکړه ۲۰ نو دا بیا په خپلو یارانو عاشقه شوله ۲۰
چه دَ هغو غوښه دَ خرو دَ غوښې په شان ده او چه مینه ئې
دَ آسونو دَ مینې په شان وه ۲۱ هم هسې تا دَ خپلې ځوانۍ ۲۱
فاسقې یاده کړه هغه وقت چه مصریانو ستا دَ ځوانۍ دَ تیو دَپاره
ستانې ومږل

۲۲ دې دَپاره اې اهولیبې خداوند یهوه داسې وائې ګوره زه ۲۲
به هغه یاران چه ستا زړه ورنه ګرزېدلې دې په غُصه کړم او
هغوې به په تا له هره لورې راولم ۲۳ دَ بابل زامن او ټول ۲۳
کسدیان فقود او شوع او کوع او له هغو سره دَ آشور ټول زامن
ټول دلپسند ځوانمرد او سرداران او حاکمان دَ هغو ټول امیران
او نامدار چه ټول سره په آسونو سواره دي په تا باندې به راولم
۲۴ نو هغوې به دَ وسلو او دَ سوارېو او دَ ګاډېو او دَ ټولېو دَ ۲۴
لوې جماعت سره به په تا حمله وکړې او زغره او ډال او خول
ورځنې له څلورو لورېو به دِ سره ګېر کړې زه به هغوې ته دَعدالت
کار وسپارم او هغوې به دَ خپلو حکمونو په موافق په تا حکم
وکړې ۲۵ او زه به خپل غیرت ستا په مخالفت قایم کړم او هغوې ۲۵
به په غضب سره په تا عمل وکړې او هغوې به ستا پوزه او ستا
غوږونه پرې کړې او ستا باقې خلق به په تُورې پرېوځې هغوې به
ستا زامن او لونړه ونیسې او هرڅه چه ستا باقې وې په اور
به وسېځلې شي ۲۶ او هغوې به ستا جامې له تا نه وکاږې او ۲۶
ستا ښائسته کالې به یوسې ۲۷ او زه به ستا شهوت پرستې له ۲۷
تا نه او ستا زناکارې چه دَ مصر له زمکې وه موقوف کړم
چه ته به دَ هغو په لورې بیا سترګې پورته نه کړې او بیا به

۲۰ مصر په ياد نه کړي ۲۰ ځکه چه خداوند يهوه داسي وائي چه گوره
زه به تا د هغو په لاس کښې چه ته ورنه نفرت کوي او د هغو
۲۹ په لاس کښې چه ستا ځان ورنه گرزيدلي دي ورکړم ۲۹ او هغوي
به له تا سره په دښمنئ سره سلوک وکړي او ستا ټول محنت به
واخلي او تا به لوڅه لغړه پريږدي ترڅو چه ستا د شهوت
پرستئ او ستا د خباثت او ستا د زناکارئ پرده به ظاهره شي
۳۰ ۳۰ زه به دي دپاره دا له تا سره وکړم چه ته د زناکارئ دپاره
۳۱ په غير قومونو پسي تلوي او د هغو له بتانو ناپاکه شوي يي ۳۱ ته
د خپلي خور په لاري تلي يي نو زه به د هغي پياله ستا په لاس
۳۲ درکړم ۳۲ خداوند يهوه داسي وائي چه ته به له خپلي خور له
پيالي نه چه ژوره او لويه ده وڅښې ته به د خندا او د ټوقو دپاره
۳۳ شي ځکه چه دغه ډکه ده ۳۳ ته به له مستئ نه او له غمه ډکه
شي د ويرانئ او د حيرانئ له پيالي نه او ستا د خور د سمرون
۳۴ له پيالي نه ۳۴ ته به هغه وڅښې او وبه ئي زبېښې او د هغي
کودري به وکړچوې او خپل تي به وشوکوې ځکه چه ما ويلي دي
۳۵ خداوند يهوه وائي ۳۵ خداوند يهوه داسي وائي دي دپاره چه تا
زه هير کړي يم او د خپلي شا د وروستو د غورزولي يم نو ته
به هم د خپلي زبونئ او زناکارئ پېټې واخلي
۳۶ ۳۶ بيا خداوند و ماته وويل چه اي آدم زاده ته به د
اهوله او د اهوليبه دپاره حکم وکړې څه؟ او د هغو په خبيثو
۳۷ کارونو ئي خبر کړه ۳۷ ځکه چه هغوي زنا وکړه او د هغو له لاسونو
خون شوي دي هو هغوي له خپلو بتانو سره زنا وکړه او له هغو
زامنو سره هم چه دوي هغوي ځما دپاره و زيږول په اور کښې ئي
۳۸ تير کړل تاچه ونغړدلي شي ۳۸ او سواله دي هغوي دا راسره
کړي دي چه هم هغه ورځ ئي ځما مقدّس ناپاک کړ او ځما

سبّتونه ئي پليت کړل ٣٩ ځکه هرکاه چه هغوي خپل اولاد دَ خپلو ٣٩
بُتانو دَپاره ذبح کړه نو دوي هم هغه ورځ ځما په مقدّس کښې
داخلَ شول تاچه ناپاک ئي کړي او کوره هغوي ځما دَ کور په مينځ
کښې داسي کار کړي دي ٤٠ بلکه هغوي له لري سړي راوبلل چه ايلچي ٤٠
ئي هم ور واستاوه او کوره هغوي راغلل نو ته دَ هغو دَپاره ولمبيدلې
او سترګي دِ په رنجاو کړې او زيب او زينت دِ جوړ کړ ٤١ او ته په ٤١
قيمتي پالنګ کښيناستې او دَ هغه دَ وړاندِ دِ دسترخوان آراسته
کړ او په هغه باندِ دِ ځما خوشبوئي او ځما عطر کښيښول ٤٢ او دَ ٤٢
خوښي دَ ټولي آواز له هغي سره وه او سوا له عامو خلقو له بيابان
ئي شرابيان راوستل دَ هغو په لاسونو کنګڼ وُو او په سرونو
ئي ښائسته تاجونه وُو ٤٣ نو ما دَ هغي په باب چه په زنا کولو ٤٣
کښې بُډئ شوي وه ووېل چه داخلق به اوس له دغي سره
زنا وکړي څه؟ او دا به له دوي سره څه؟ ٤٤ نو دوي هم ٤٤
وهغي ته داسي ورغلل لکه چه څوک کنجرئ ته ورځي هم هسي
هغوي وهغو ناسقو ښځو اهوله او اهوليبه ته ورغلل ٤٥ ليکن ٤٥
رښتني سړي به دَ زانيانو فتوىٰ او دَ خوني ښځو فتوىٰ په هغوي
ورکړي ځکه چه هغوي زانياني دي او خون دَ هغو په لاسونو کښې
دي ٤٦ ځکه چه خداوند يهوه داسي وائي چه زه به په هغوي يو ټولي ٤٦
راخيژوم او هغوي به تېل وهلو او لوټ ته ورکړم ٤٧ او هغه ټولي ٤٧
به ئي په کاڼو سنګسار کړي او په خپلو تورو به ئي ووژني دَ هغوي
لونړه او ځامن به قتل کړي او کورونه به ئي په اور وسيځي ٤٨ په ٤٨
دي شان سره به زه له زمکي نه فاسق نيست کړم تاچه
ټولي ښځي ادب زده کړي او ستاسي دَ فسق په دود بيا
ونه کړي ٤٩ او هغوي به ستاسي دَ فسق بدله له تاسي ٤٩
واخلي او تاسي به دَ خپلو بُتانو دَ ګناهونو دَ سزا پيټي

واخلئ تاچه تاسي پوه شئ چه خداوند يهوه زه يم ❊

# څليرشتم باب

۱ ۱ بیا دَ نهم کال دَ لسمي مياشتي په لسم تاريخ کښ دَ خداوند
۲ کلام ماته را ورسيده او وئي ويل چه ۲ اي آدمزاده دَ نن
ورځي هو دَدي ورځي نوم خيل ځان ته وليکه بادشاه دَ بابل
۳ عين په دي ورځي په اورشليم باندِ نژدي شه ۳ او هغه باغي ټبر
ته يو مثال واوروه او هغوي ته ووايه چه خداوند يهوه داسي
وائي چه يو ديګ دِ باندِ شي هو هغه باندِ کړه او په هغه کښ
۴ اوبه هم واچوه ۴ او دَ هغه ټوکړي په هغه کښ يو ځاي کړه ښي
ښي ټوکړي ورنونه او ولي او په عمده عمده هډونو ئي ډک کړه
۵ ۵ او له ګلي نه غوره غوره را ونيسه او تر هغه دَ لاندِ هډونه
توده کړه او ښه ئي وېشوه هغوي دِ هغه هډونه په هغه کښ
ښه پاخه کړي
۶ ۶ دي دپارَ خداوند يهوه داسي وائي چه په هغه خوني ښهر
افسوس دَي يعني په هغه ديګ چه دَ هغه زنګ په کښ دي
او دَ هغه زنګ ورنه لري نه شه يوه يوه ټکړه له هغه راوباسه
۷ او په هغي دِ هسک واچاوه نه شي ۷ ځکه چه دَ هغو وينې دَ
هغه په منځ کښ دِي هغه ئي په نمر وهلي کاڼي باندِ ايښي دي
۸ په زمکه ئي توي نه کړ چه په خاورو کښ ئي پټ کړي ۸ نو له دي
سببَ چه غضب وخيژي او بدله واخلي ما دَ هغي ويني په نمر وهلي
۹ کاڼي باندِ کيښودلي دِي تاچه هغه پټي نه شي ۹ دي دپاره خداوند
يهوه داسي فرمائي چه افسوس دَي په هغه خوني ښهر ليکن زه
۱۰ به دَ هغي توده لويه کړم ۱۰ لرګي ډير کړه اور بل کړه غوښه پخه
۱۱ کړه او مصالح پرِ ښه واچوه او هډوکي دِ هم وسيځلي شي ۱۱ بيا

هغه خالي په انکار کېږده چه دَ هغه زيږ کړم شي او وسوځي او
١٢ ناپاکِي ئې ويلي شي او زنګ ئې نيست شي ١٢ هغې په محنت سره
ستړي کړي دي ځکه چه دَ هغې لوي زنګ ور نه نه لرې کيده دَ
١٣ هغه زنګ به اور کښ ١٣ ستا په ناپاکئِ کښ خباثت دَي ځکه
چه ما ستا پاکول وغوښتل ليکن ته پاکيدلي نه شوې نه به
بيا له خپلې ناپاکئِ پاکه نه شې تر هغه پورې چه زه خپل قهر
١٤ په تا نازل کړم ١٤ ما خداوند دا ويلي دي دا به وشي او زه به ئې
وکړم زه به ستون نه شم او نه به وګرزم او نه به پښيمانه شم
ستا دَ لارې او ستا دَ کارونو په موافق به هغوي په تا عدالت
١٥ وکړي خداوند يهوه فرمائي ١٥ بيا دَ خداوند کلام ما ته راورسيده
١٦ او وئې ويل ١٦ چه اي آدمزاده ګوره زه به ستا دَ سترګو خواهش
په وهنه له تا واخلم ليکن نه به ته وِير کوې او نه به ته ژړا
١٧ کوې او نه به ستا اوښکې وبهيږي ١٧ په پټه اسويلي کوه په
مړي ژړا مه کوه ليکن خپله پګړئِ به سر وتړه او پڼې به پښو
١٨ کړه او خپلې شونډې مه پټوه او دَ خلقو ډوډئِ مه خوره ١٨ نو
ما له خلقو سره صباح خبرې وکړې او نماښام ښځه مړه شوه
١٩ او صباح مې داسې وکړل لکه چه حکم مې موندلي وه ١٩ نو خلقو
راته وويل چه ته به ئې مونږ ته نه راوښيې څه ؟ چه هغه
٢٠ چه ته ئې کوې له مونږ سره څه لري ٢٠ پس ما هغوي ته وويل
چه دَ خداوند کلام ما ته راورسيده او وئې ويل چه ته دَ
٢١ اسرائيل وکورنه ووايه ٢١ چه خداوند يهوه داسې وائي چه
ګورئِ زه به خپل مقدّس چه ستاسې دَ زور فخر او ستاسې
دَ سترګو خواهش او دَ زړو سوي دَي ناپاک کړم او ستاسې
ځامن او ستاسې لونړه چه له تاسې نه پاتې دي په توري به
٢٢ پريوځي ٢٢ او تاسې به داسې وکړئِ لکه چه ما وکړل تاسې به

خپلي شوندي پټي نه کړئ او دَ خلقو دوډئ به نه خورئ -
۲۳ ۲۳ او ستاسي پګړئ به ستاسي په سرونو او ستاسي پڼي
به ستاسي په پښو کښې وي او تاسي به ژړا او وير نه کوئ
لیکن دَ خپل شرارت په سبب به فنا شئ او یو بل ته به سره
۲۴ اسویلي کوئ ۲۴ لکه چه حزقئیل ستاسي دَپاره نخښه ده هرڅه
چه ده کړي دي تاسي به هم هسي کوئ او هرکله چه دا راشي
۲۵ نو تاسي به پوه شئ چه خداوند یهوه زه یم ۲۵ او ته اي آدمزاده
ګوره چه هغه ورځ چه له هغوي نه دَ هغوي زور او دَ هغوي
شان او خوښي او دَ هغوي دَ سترګو خواهش او دَ هغوي دَ
۲۶ ځانونو تکیه یعني ځامن او لونړه ورنه واخلم هغه ورځ ۲۶ هغوي
چه وتښتي تا ته به درشي چه ستا په غوږونو کښې دا واوروي
۲۷ ۲۷ هغه ورځ به ستا خوله په هغه چه خلاص شوي دي پرانتلې
شي او ته به ووایي او بیا به ګونګ نه اوسې نو ته به دَ هغو
دَپاره یو نښان شي او هغوي به پوه شي چه زه خداوند یم *

# پنځه ویشتم باب

۱ ۱ او بیا دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئي ویل ۲ اي آدمزاده
دَ بني عمون په لوري خپل مخ وګرزوه او دَ هغوي په خلاف نبوت
وکړه او بني عمون ته ووایه چه دَ خداوند یهوه کلام واورئ
۳ ۳ خداوند یهوه داسي وایي اګرچه تا ځما دَ مقدس په باب
کښې هغه وقت چه هغه ناپاک کړي شه او دَ اسرائیل دَ زمکي
په باب هغه وقت چه دا ویجاړه کړي شوه او دَ اهل یهوداه
۴ په باب هغه وقت چه بندي کړي شه هاها دِ کړي دي ۴ دي دَپاره
ګوره زه به تا مشرقي خلقو ته ورکړم چه ته دَ هغو ملکیت شي
او هغوي به په تا کښې دَ خپل ځان دَپاره کیږدئ ودروي او

خپل مکان به ستا په منځ کښې جوړ کړي او ستا میوې به
۵ خوري او ستا پئي به څښي ۵ او زه به ربّه د اوښانو پنډغالي
او د بني عمون زمکه به د غېلو شپول کړم او تاسي به پوه شئ
۶ چه زه خداوند يم ۶ ځکه چه خداوند يهوه داسي وائي اګر
که تا لاسونه ووهل او پښي دِ ودربولي او د اسرائيل د ملک
۷ په بربادئ باندِ په خپل ټول عداوت سره خوشي وکړه ۷ دي
دپاره ګوره ما خپل لاس په تا غوزولي دی او تا به غير قومونو
ته حواله کړم تاچه هغوي تا لوټ کړي او زه به تا له خلقو پرېکړم
او له ملکونو به دِ نيست او نابود کړم او زه به دِ هلاک کړم او
۸ ته به پوه شي چه زه خداوند يم ۸ خداوند يهوه داسي وائي
اګرکه موآب او شعير وائي چه د يهوداه ټبر ټول د غير قومونو
۹ په دود دي ۹ دي دپاره ګوره زه به د موآب ډډه د هغه ښهرونو
د هغه د سرحد له ښهرونو د هغه د سرحد له ښهرونو
چه د زمکي دبدبه ده له بيت يسيموت او له بعل معون او له
۱۰ قريتيم نه پرانزم ۱۰ او زه به هغه د مشرق و خلقو ته د بني عمون
سره ميراث ورکړم تاچه د قومونو په منځ کښې د بني عمون ذکر
۱۱ پاتي نه شي ۱۱ او زه به په موآب عدالتونه وکړم او هغوي به پوه
شي چه خداوند زه يم

۱۲ ۱۲ خداوند يهوه داسي فرمائي اګرکه ادوم د يهوداه له ټبر
سره د بدل اخستلو کار وکړي او هغوي په خپل بدل اخستو
۱۳ سره ډېره ګناه وکړي ۱۳ دي دپاره خداوند يهوه داسي وائي
چه زه به خپل لاس په ادوم وغزوم او له هغه نه به انسان
او حيوان پرې کړم او له تيمن به هغه ويران کړم هو تر ددان
۱۴ پوري به هم په توري سره پريوځي ۱۴ او زه به د خپل قوم اسرائيل
له لاس په ادوم باندِ خپل انتقام نازل کړم او هغوي به څما د

غضب او دَ غُصّي په موافق له أدوم سره سلوک وکړي نو هغه
بدله چه زه ئي اخلم هغوي به ئي وپيژني خداوند يهوه وائي
۱۵ ۱۵ خداوند يهوه داسې فرمائي اګر که فلسطيانو دَ بدلي
اخستلو کار وکړ او دَ زړه له نفرتَ ئي خپله بدله واخسته تا
۱۶ چه دَ قديم عداوت په سبب هغه هلاکت کړي ۱۶ دي دَپاره خداوند
يهوه داسې وائي چه کوره زه به په فلسطيانو خپل لاس وغزوم
او کريتيان به پرېکړم او دَ سمندر دَ غاړي باقي خلق به هلاک
۱۷ کړم ۱۷ او زه به دَ کرمئ په تنبيهو سره لويه بدله واخلم او هرکله چه
زه له هغو بدله واخلم نو هغوي به پوه شي چه خداوند زه يم ٭

# شپږويشتم باب

۱ ۱ او يولسم کال دَ مياشتي په اوّل ورځ داسې وشول چه دَ
۲ خداوند کلام ما ته راورسيده او وئي ويل ۲ اي آدمزاده اګر که
صورَ دَ اورشليم په خلاف ويلي دي چه هاي هغه چه دَ
قومونو دروازي وي ماتي شولي اوس هغه بڼول په ما باندِ مائل
۳ کيږي زه به ډک شم ځکه چه هغه ويجاړ شوي دي ۳ دي دَپاره
خداوند يهوه وائي کوره اي صوره زه ستا مخالف يم او ډير قومونه
۴ به په تا را وخيژوم لکه چه سمندر خپل موجونه راخيژوي ۴ او
هغوي به دَ صورَ ښهرپناه مات کړي او دَ هغو برجونه به ونړوي
۵ او زه به دَده خاوري له ده ونوړم او هغه به کنجه پرښه کړم ۵ دي
به دَ سمندر په منځ کښ دَ جال غوړولو ځاي وي ځکه چه ما
ويلي دي خداوند يهوه وائي او هغه به دَ قومونو دَپاره غنيمت وي
۶ ۶ او دَ هغه لوڼړه چه په ښتو کښ دي په توري به وژللي شي
۷ او دوي به پوه شي چه زه خداوند يم ۷ ځکه چه خداوند يهوه
داسې وائي کوره زه به دَ بابل بادشاه نبوکدنضر چه شاهنشاه

دَي له اسونو او له سوارېو او دَ آسونو له سوارو او دَ ډېرو
۸ خلقو دَ ټولي سره له شمال نه په صور باندِ راولم ۸ هغه به
ستا لونړه چه په پټيو کښِ دي په تُورو ووژني او ستا په گرداگرد
۹ به مورچې وتړي او ستا په خلاف به ډالونه واخلي ۹ هغوي به خپل
منجنيق ستا په ښهرپناه وچلوِي او په خپلو تبرونو به ستا
۱۰ برجونه ونړوي ۱۰ دَ هغه دَ آسونو دَ ډېروالي په سبب هغه دوړي
به تا پټ کړي دَ هغه دَ سوارو او دَ گاډيو او دَ خرخونو له آوازه
نه ستا ديوالونه به ولړزيږي هرکله چه هغه ستا په دروازو
۱۱ درننوزي لکه چه په سوري شوي ښهر ۱۱ هغه به دَ خپلو آسونو
په سمونو ستا ټول سړکونه ودربي او په تُوري سره به ستا
خلق قتل کړي او ستا دَ طاقت ستني به زمکي ته پرېوزي -
۱۲ ۱۲ او هغوي به ستا دولت په لوټ يوسي او ستا تجارت به
وشوکوي او ستا ديوالونه به ونړوي او ستا رنگينه محلونه به
نيست کړي او ستا کاڼي او لرگي او ستا خاوره به دَ اوبو په منځ
۱۳ کښِ واچوي ۱۳ او زه به ستا دَ سندرو آواز بند کړم او ستا
۱۴ دَ ستارو آواز به بيا وانه وريدې شي ۱۴ او زه به دِ گنجه
پرښنه کړم نه به دَ جال غوړولو ځاي شي نه به بيا بنا نه شي
ځکه چه ما خداوند دا ويلي دي خداوند يهوه فرمايي
۱۵ ۱۵ خداوند يهوه صورته داسي وايي چه جزيري به ستا دَ پرېوتلو
له شور نه هغه وقت چه ستا زخميان به زگيروي کوي او دَ
۱۶ قتل کار ستا په منځ کښِ جاري شي و به نه زهيږي څه ؟ ۱۶ نو
به دَ سمندر ټول شاهزادگان له خپلو تختونو نه را کوز شي او
خپلي دوشالي به لري کړي او خپل بوټيداري جامي به وکاږي
دوي به دَ زهيدلو پوشاک واغوندي په خاورو به کښيني او
۱۷ دوي به هر ساعت ريږيږي او ستا په سبب به حق حيران وي

۱۷ ۱۷ او هغوي به په تا باندِ دا وِیر وکړي او تاته به ووايي چه های
ته څرنګ نابوده شوي اي چه له دریابونو نه آبادوي هغه ښهر
چه سنابلي وه او چه په سمندر کښ زوراور وه هغه او دَ هغه
اوسیدونکو چه په ټولو مسافرانو باندِ ئي خپل دهشت وغورزاوه
۱۸ ۱۸ اوس ستا دَ پرېوتلو په ورځ به جزیرې وریږیږي هو دَ سمندر
۱۹ ټاپوګان به ستا له تللو نه په حیرت کښ شي ۱۹ ځکه چه خداوند
یهوه داسي وايي هرکله چه زه تا دَ هغو ښهرونو په دود چه غیرآباد
دِي ویران کړم چه زه به تاباندِ سمندر وخیژوم او تا لوي لوي
۲۰ او به پټ کړي ۲۰ نو زه به تا له هغو سره چه ډوغل ته کوز کیږي
دَ زاړه وقت خلقو ته کوز کړم او دَ زمکي دَ لاندي په ځایونو کښ
چه له قدیمَ دِي له هغو سره چه په ډوغل کښ کوز کیږي تا به
جوړ کړم تاچه ته بیا آباد نه شي او زه به دَ ژوندیو وُ ملک ته
۲۱ جلال ورکړم ۲۱ زه به تا یو عبرت کړم او ته به نه يي هرڅو چه
ستا ندلاش کیږي نه به هیڅرنه تر ابدَ پیدا کړي مونده نه شي خداوند یهوه
فرمايي ❊

# اووه ویشتم باب

۱ ۲ آ بیا دَ خداوند کلام ماته راورسیده او وئي ویل ۲ چه اي
۳ آدمزاده ته په صور باندِ وِیر پورته کړه ۳ او صورته ووایه اي
ته په عین ګدر دَ سمندر کښ اوسیدونکي دَ ډیرو ډیرو جزیرو
دَ خلقو دَپاره سوداګر يي خداوند یهوه داسي وايي چه اي صوره
۴ تا ویلي دِي چه ځما کمال حسن دَيَ ۴ ستا سرحدونه دَ سمندر په
۵ منځ کښ دِي ستا معمارانو ستا حُسن کامل کړي دَيَ ۵ هغوي دَ
سنیر دَ صنوبرو نه ستا تختي جوړي کړي دِي هغوي دَ لُبنان
۶ له ځنګو ستا دَپارَ تیرونه جوړ کړي دِي ۶ هغوي دَ بسن له
بلوطو ستا چاپي جوړي کړي دِي ستا فرش دَ شمشاد په لرګو کښ

جړاو شوي دَ هاتي له غابنونو نه چه هغه ئي دَ کتيون له جزيري
راوړل طيار کړي دي ۷ تا به دَ بادوان دَپاره دَ مصر بوټيدار کتان ۷
غوړول ستا شميانه له نيلي او له ارغواني جامي نه چه دَ
اليسه له ټاپوګانو وه ۸ دَ صيدا او دَ اروَد اوسيدونکي ستا ۸
ملاحان وُو او اي صوره ستا داناپان خلق چه ستا په منځ کښ
وُو هغوي ستا رهبر ملاحان وُو ۹ دَ جبال زاړه او داناپان ۹
ستا په منځ کښ وُو چه دَ جهاز سوري بند کوي ټول جهازونه
دَ سمندر او دَ هغه ملاحان به تا کښ حاضر وُو چه ستا
دَپاره دَ تجارت کار وکړي ۱۰ دَ فارس او دَ لودا او دَ فوط خلق ۱۰
په لښکر کښ وُو او ستا جنګيالي سري هغوي به ډالونه او
خولونه ستا په منځ کښ ځوړند کړل او هغوي به تا ته رونق
درکاوه ۱۱ بني اروَد هم ستا له فوج سره له څلورو طرفونو ستا ۱۱
په ديوالونو باندِ وُو او دلاوران ستا په برجونو کښ وُو هغوي
ډالونه له څلورو طرفونو ستا په ديوالونو ځوړند کړل او ستا
ښائست ئي کامل کړي دي ۱۲ ترسيس به دَ هر قسم دَ مال دَ ۱۲
کثرت په سبب ستا سوداګر وه هغوي به سپين زر او اوسپنه
او قلعي او جست راوړل ستا په بازار کښ به ئي خرڅول ۱۳ ياوان ۱۳
او توبل او مسک ستا سوداګران وُو هغوي ستا په بازار کښ
دَ سړيو او دَ زيړو دَ لوښيو سوداګري کوله ۱۴ دَ توغرماه کور ستا ۱۴
په بازارونو کښ دَ آسونو او دَ چابک سوارانو او دَ قچرو سوداګري
کوله ۱۵ بني ددان ستا سوداګر وُو ډير ټاپوګان دَ سوداګرئ ستا په ۱۵
لاس کښ وُو هغوي به تا ته دَ ښکرونو دَ هاتي دَ غابنونو او دَ
آبنوسو هديي دروړلي ۱۶ ارامي ستا دَ کاريګرو دَ کثرت په سبب ستا ۱۶
سوداګران وُو هغوي به بوټيدار عقيق او ارغواني او بوټيدار
او مهين کتان او مرجان او لعل. راوړل ستا په بازار کښ به

۱۷ يُ خرڅول ۱۷ يهوداه او دَ اسرائيل ملک ستا سوداګران وُو
هغوي به دَ منيت او دَ پنګ غنم او شهد او تيل او بلسان
۱۸ راوړل ستا په بازار کښ به يُ خرڅول ۱۸ دمشق ستا دَ ډيرو کاريګريو
په سبب او دَ هر قسم مال دَ کثرت په جهت دَ حلبون دَ شرابو
۱۹ او دَ سپينو وړيو سوداګر وه ۱۹ ويدان او ياوان به له ازال ستا
په بازار کښ پيرودل کول آبدار فولاد او دارچيني او تج ستا په
۲۰ بازار کښ وُو ۲۰ ددان ستا سوداګر وُو چه دَ سوارۍ لمڅي به يُ
۲۱ په تا کښ خرڅول ۲۱ عرب او دَ قيدار ټول شاهزادګان ستا دَ
لاس سوداګران وُو هغوي به وري او ميږونه او وز راوستل
۲۲ ستا سوداګري به يُ کوله ۲۲ دَ سبا او دَ رعمه سوداګرانو به له
تا سره سوداګري کوله هغوي به دَ هر قسم قيمتي او خوشبوي
مصالحه او هر قسم قيمتي کاڼي او سره زر ستا په بازار کښ
۲۳ پيرودل ۲۳ دَ حران او دَ کنه او دَ عدن سوداګران او دَ سبا
۲۴ او دَ اسور او دَ کلمد ستا سوداګران وُو ۲۴ هغوي په قيمتي
څيزونو ستا سوداګران وُو چه شنه څادرونه او بوټيدار پوشاکونه
دَ لمڅو په صندوقونو کښ په رسيو سره تړلي او مضبوط
۲۵ کړي ستا په تجارت کښ وُو ۲۵ دَ ترسيس جهازونه ستا دَ
تجارت کاروانونه وُو نو ته آباد وي دَ سمندر په منځ کښ ډِ
۲۶ نهايت شان او شوکت لاره ۲۶ ستا مانړګانو ته ګزو اوبو ته
۲۷ راوستلي مشرقي باد دَ درياب په منځ کښ ماته کړي ۲۷ ستا
مال او اسباب او ستا بازارونه او ستا جنسونه دَ تجارت
ستا دَ جهاز ملاحان او ستا رهبر ملاحان او ستا دَ جهاز
سوري بندونکي او ستا دَ سوداګرۍ ګماشتګان او ټول جنګي سړي
چه په تا کښ دِي له هغه ټولو ټوليو سره چه ستا په منځ کښ
۲۸ دي ستا دَ تباهۍ په ورځ کښ به په درياب کښ پريوزي ۲۸ ستا

دَ رهبرو ملاحانو دَ نارو کولو له شورَ به ټول اطراف ولړزيږي
۲۹ ۲۹ او ټول چپي وهونکي او دَ جهاز ملاحان او ټول رهبر ملاحانَ
دَ درياب به له خپلو جهازو نه راکوز شي هغوي به په وچې
۳۰ ولاړ وِي ۳۰ او خپل آوازونه به تاته واوروِي او په ورڅ وړڅ
به وژاړي او په خپلو سرونو به خاوري واچوي او په ايرو کښ
۳۱ به ورغړي ۳۱ هغوي به ستا دَپاره خپل ځانونه کَنجي کړِي او ټَړي
به په ملا وتړي او هغوي به ستا دَپاره په ترخه ځان سره او
۳۲ په ترخه وِير سره وژاړي ۳۲ او په وِير کولو سره به ستا وينا
واېي او په تا باندِ به وِير وکړِي او داسي به وواېي څوک دَ صورَ
۳۳ په شان دَی چه دَ درياب په منځ کښ خاموش شه ۳۳ هرکله
چه به ستا سودا له دريابونو راوتله نو به ئي ډير قومونه مالامال
کول تا به دَ خپل دولت او دَ تجارت دَ دولت په کثرت سره دَ
۳۴ زمکي بادشاهان دولتمند کول ۳۴ ستا دَ ماتيدلو په وقت کښ
دَدرياب دَ اوبو په ژورو کښ نو ستا سوداګري او ستا ټولي ښنا
۳۵ په منځ کښ پريوتل ۳۵ او ټول اوسيدونکي دَ ټاپوګانو به ستا
په باب حيران وِي او دَ هغوي بادشاهان به سخت ترسناک وِي
۳۶ او څهري به ئي پريشانه شي ۳۶ دَ قومونو تاجران به په تا شيبلکي وکړي
ته به عبرت شي او بيا به هيڅري نه يي ❊

# اته ويشتم باب

۱ ۱ او بيا دَ خداوند کلام ماته راورسيده او وئي ويل ۲ چه اي
آدم زاده ته شاهزاده دَ صورَ ته ووايه چه خداوند يهوه داسي
فرماېي اګر که ستا زړه کبرجن شه او تا ويلي دي چه زه خداي
يم او دَ خدايانو په تخت باندِ دَ درياب په منځ کښ کښيناستم
۳ ۳ اګر که تا خپل زړه دَ خداي دَ زړه غوندِ جوړ کړي دَی نو

۴ هم ته خداي نه يې بلکه انسان ۴ گوره ته له دانيال نه زيات
دانشمند يې داسي هيڅ راز نشته چه له تا نه پټ دئ تا پخپل
حکمت او عقل سره مال حاصل کړ او سره او سپين زر
۵ دِ پخپلو خزانو کښ جمع کړل ۵ تا پخپل لوي حکمت او پخپلي
سوداګرئِ سره خپل دولت ډير زيات کړي دئ او ستا زړه ستا
۶ دَ دولت په سبب کبرجن دئ ۶ دي دَپاره خداوند يهوه داسي
۷ وايي اګر که تا خپل زړه دَ خداي دَ زړه په شان جوړ کړ ۷ دي
دَپاره ګوره زه به په تا باندِ هغه بيګانه چه په قومونو کښ هيبتناک
دي دروله هغوي به خپلي تُوري وباسي ستا دَ دانائِ دَ خوبئِ
۸ په خلاف او ستا جمال به ناپاک کړي ۸ هغوي به تا په ډوغل کښ
کوز کړي او ته به دَ هغو په مرګ مړ شي چه دَ سمندر په منځ
۹ کښ قتل کيږي ۹ ته به دَ هغه دَ وړاندِ چه تا قتل کوي بيا به
و وايي څه ؟ چه زه خداي يم دي دَپاره به ته دَ خپل قتل کونکي
۱۰ په لاس کښ خداي نه يې بلکه انسان يې ۱۰ لکه چه نامختون مړئ
هم هسي به ته دَ بيګانه له لاسَ مړ پروت يې څکه چه ما ويلي
دِي خداوند يهوه وايي
۱۱ ۱۱ او بيا دَ خداوند کلام ما ته را ورسيده او وئ ويل
۱۲ ۱۲ اي آدمزاده دَ صور په بادشاه وِير پورته کړه او ورته ووايه
چه خداوند يهوه داسي فرمايي ته په کمال باندِ مهر لګونکي شولي
۱۳ ته له دانائِ نه ډک او په جمال کښ کامل يې ۱۳ ته په عدن
کښ دَ الله باغ يې هر يو قيمتي کاڼي ستا دَ پوشاک دَپاره وه
عقيق او زيړ ياقوت او الماس او زبرجد او جزع او يشب او نيلم
او زمرد او سور عقيق او سره زر ستا دَ ډولکيو او دَ تورئِ
دَ جوړولو کار په تا کښ کيده هغه ورځ چه ته مخلوق شوي
۱۴ هغوي طيار شول ۱۴ ته يو مسح شوي کروبي وي چه سيوري يئ

غورځاوه او ماته دَ خداي په پاک غره باندِ لرلي او ته دَ آتشي
کاڼيو په منځ کښ گرزېدلي ۱۵ ته دَ خپل پیدایش له ورځي په ۱۵
خپلو لارو کښ کامل وي تر هغه پوري چه په تا کښ بدکارۍ
موندې شوه ۱۶ ستا دَ سوداگرۍ دَ فراوانۍ له سببه هغوي ستا ۱۶
مینځ له ظلم هم ډک کړي دَي او تا خطا کړي ده نو ماته دَ خداي
له غره نه دَ مرداري په شان وغورزولي يي — او ماته اي سوري
غوړونکي کروبي دَ آتشي کاڼيو له منځ نه فنا کړي يي ۱۷ ستا زړه په ۱۷
خپل حسن باندِ فخر کاوه تا دَ خپل جمال په سبب خپل حکمت
ورک کړي دَي ماته په زمکه غورزولي يي ما ته دَ بادشاهانو دَ
وړاندِ کیښودلي يي تا چه هغوي دِ ووینِي ۱۸ تا دَ خپل شرارت ۱۸
له کثرت نه او دَ خپلي سوداگرۍ له ناراستۍ نه خپل پاک مکان
ناپاک کړ دي دَپاره ما ستا له منځ نه یو اور راويستلي دَي چه
تا وخوري او ماته ستا دَ ټولو لیدونکیو دَ وړاندِ په زمکي باندِ
ايري کړي يي ۱۹ ټول چه دَ قومونو په منځ کښ ستا پېژاندونکي دي ۱۹
ستا په لیدو به حیران شي ته به عبرت شي او بیا به هرگز
نه يي

۲۰ او بیا دَ خداوند کلام ماته را ورسیده او وئي ويل ۲۰
۲۱ اي آدمزاده ته دَ صیدا په لوري متوجّه شه او دَ هغه په ۲۱
مخالفت کښ نبوّت وکړه او ووایه ۲۲ چه خداوند یهوه داسي وايي ۲۲
چه گوره زه ستا مخالف یم اي صیدا او زه به ستا په منځ کښ
مجید شم تا چه هغوي معلوم کړي چه زه خداوند یم هرکله چه
زه به په هغه کښ عدالتونه کوم او په هغه کښ پاک ودرولي شم
۲۳ زه به په هغه کښ وبا واستوم او دَ هغه په محلّو کښ به ۲۳
خون او دَ هغه په منځ کښ به له هغي ټوري له څلورو طرفو ژوبل
شوي به پریوځي او هغوي به پوه شي چه زه خداوند یم ۲۴ نو به ۲۴

دَ اهل اسرائیل دَپاره دَ هغوي دَ ځلورو لوریو له ټولو خلقو نه
چه هغوي ئي سپک ګڼړِي هیڅ ماتیدونکي اغزي یا آزارونکي خزې
پاتي نه شِي او هغوي به پوه شِي چه خداوند یهوه زه یم
۲۵ ۲۵ خداوند یهوه داسي وايي هرکله چه ما به بني اسرائیل
له هغو قومونو چه دوي په کښې پراګنده شوي دِي راجمع کړِي
وِي نو زه به دَ قومونو دَ سترګو دَ وړاندِ په هغوي خپله پاکي
وِدرووم او دوي به په هغي زمکي کښې چه ما خپل بنده یعقوب
۲۶ ته ورکړِه و اوسي ۲۶ او دوي به بيخطري په هغي کښې استوګنه کوِي
او مکانونه به جوړ کړِي او دَ انګور باغونه به ولګوِي او په
سلامتئِ سره به اوسِي هرکله چه زه هغو ټولو ته چه له ځلورو
طرفو ئي دَ هغو سپکاوَي کاوه فتویٰ ورکړم او هغوي به
پوه شِي چه زه خداوند دَ هغوي الله یم +

# نه ویشتم باب

۱ آ دَ لسم کال دَ لسمي میاشتي په دولسم تاریخ دَ خداوند کلام
۲ ماته راورسیده او وئي ویل ۲ چه اي آدمزاده ته دَ مصر دَ
فرعون بادشاه په خلاف خپل مخ کړِه او دَ هغه او دَ ټول ملک
دَ مصر په مخالفت نبوّت وکړِه او ووایه چه خداوند یهوه داسي
۳ فرمايي ۳ چه ګوره اي دَ مصر بادشاه فرعون زه ستا مخالف
یم دَ هغه لوي نهنګ په شان چه دَ خپلو دریابونو په منځ کښې
سلامت اوسِي او وايي چه خما دریاب خما دَي او ما هغه دَ خپل
۴ ځان دَپاره جوړ کړِي دَي ۴ لیکن زه به ستا په ژامو کښې کُنډي
کیږدم او زه به ستا دَ دریابونو کبان ستا په پښوخیو ونښلوم
او زه به تا ستا دَ دریابونو له منځ را وباسم سنا دَ دریابونو ټول
۵ کبان چه ستا په پښوخیو ونښلِي ۵ او زه به تا هو تا او ستا

۵ دَ دریابونو کبان په بیابان کښې پرېږدم ته به په ارت میدان
کښې پرېوزې ته به بټول کړې نه شې او نه به جمع کړې شې
نه مِې دَ صحرا دَ درندګانو او دَ آسمان دَ پرندګانو دَ خوراک
۶ دَپاره ورکړې یې ۵ او ټول اوسیدونکې دَ مصر به پوه شِي چه
زه خداوند یم دې دَپاره چه هغوی دَ اسرائیل دَ ټبر دَپاره
۷ فقط دَ دُرمې کونک وه ۶ هرکله چه هغوی ستا لاس ونیونو مات
شوې او دَ هغوی ټوله اوږه دِې وڅیرله بیا چه هغوی په تا تکیه
وکړه نو تکړې تکړې شوې او دَ هغو ټولو ملاګانې دِې په تمکیدلو
۸ کړې ۷ دې دَپاره خداوند یهوه داسې وایِي چه ګوره زه به په تا
۹ تُوره راولم او ستا په منځ کښې به سړې او حیوانان پرېکړم ۸ او
دَ مصر زمکه به ویجاړه او ویرانه شِي او هغوی به پوه شِي
چه زه خداوند یم ځکه چه هغه ویلې دِي چه دریاب ځما دَی او
۱۰ هغه ما جوړ کړ ۹ ګوره دې دَپاره زه ستا او ستا دَ دریابونو
مخالف یم او دَ مصر زمکه له مجدال نه تر سوینې پورې بلکه
۱۱ دَ کوش تر سرحدَ به ئې خاص ویرانه او ویجاړه کړم ۱۰ دَ هغه په
منځ کښې به دَ هیڅ انسان پښې تیرې نه شِي او نه به دَ کوم
تیریدونکې حیوان دَ پښو پل په هغه کښې وِي او نه به هغه
۱۲ تر څلوېښتو کالو پورې آباد شِي ۱۱ او دَ ویرانو ملکونو په منځ کښې
به دَ مصر زمکه ویرانه کړم او دَ ویجاړو شویو ښهرونو په منځ
کښې به دَ هغه ښهر تر څلوېښتو کالو پورې ویجاړه شِي او زه
به مصریان په قومونو کښې پراګنده کړم او دَ ملکونو په منځ کښې
۱۳ به ئې تار په تار کړم ۱۲ لیکن خداوند یهوه داسې وایِي چه دَ
څلوېښتم کال په آخر کښې به مصریان دَ هغو قومونو له منځ نه
۱۴ چه هلته کښې دوې پراګنده شوِي وُو راټول کړم ۱۳ او زه به
۱ دَ مصر قید بندې بیرته راولم او دوې به دَ فتروس و زمکې

ته ور وگرزوم دَ دوي دَ پیدایښت زمکي ته او دوي به هلته
۱۵ کښې سپک بادشاهت وِي ۱۵ او هغه بادشاهت به له ټولو بادشاهتونو
زیات سپک وِي او بیا به په قومونو خپل ځان بلند نه کړِي ځکه
۱۶ چه زه به هغه کم کړم تاچه بیا په قومونو حکومت و نه کړِي ۱۶ او
هغه به بیا دَ اسرائیل دَ ټبر دَپاره ځاي دَ توکّل نه شِي ځکه
هرکله چه هغوي په وروستو وګورِي نو دَ هغوي شرارت به
۱۷ ور په یاد شِي او پوه به شِي چه زه خداوند یهوه یم ۱۷ دَ اووۀ
ویشتم کال دَ ورنبيءِ میاشتي په ورنبي تاریخ دَ خداوند کلام
۱۸ ماته را ورسیده او وې ویل ۱۸ اي آدمزاده دَ بابل بادشاه نبوکدنضر
پخپل فوج باندِ دَ صور په مخالفت کښې سخت خدمت کړي دَي هر یو
سر کَنجي شه او دَ هر یوه اوږه وسولیدله لیکن نه ده او نه دَده
لښکر له صور نه دَ هغه خدمت دَپاره چه دوي دَ هغه په مخالفت
۱۹ کښې کړي وه څه مواجب موندلي وه ۱۹ دي دَپاره خداوند یهوه داسي
وائِي چه ګوره زه به دَ مصر زمکه دَ بابل بادشاه نبوکدنضر ته
ورکړم دغه به دَ هغه ټولِي بندِي کړِي او دَ هغه لوټ به لوټ
کړِي او دَ هغه شوکه به واخلِي هغه به دَ هغه دَ لښکر مواجب وِي
۲۰ ۲۰ ما دَ مصر زمکه دَ هغه په محنتانه کښې دَ هغه محنت په سبب
چه ده دَ هغه په مقابل کښې وکړ هغه ته ورکړه ځکه چه هغوي
ځما دَپاره مشقت کړي وه خداوند یهوه وائِي
۲۱ ۲۱ هغه ورځ به دَ اسرائیل دَ ټبر دَپاره ښکر وټوکوم او تاته به
دَ هغو په منځ کښې دَ خولي کشادګي درکړم او هغوي به پوه شِي چه زه
خداوند یم +

## دیرشم باب

۱ ۱ او بیا دَ خداوند کلام ماته را ورسیده او وې ویل ۲ چه اي
۲ آدمزاده نبوّت وکړه او ووایه چه خداوند یهوه داسي وائِي په ناره

سره وواېه افسوس په هغې ورځې بانـدِ ۳ ځکه چه هغه ورځ ۳
نژدې ده هغه به دَ غیر قومونو وقت وِي ۴ ځکه چه په مصر ۴
به تُوره راشِي او هرکله چه په مصر کښې قتل وکړي شي او
هغوي دَ ده ټولي په بند سره بوزي او دَ هغه بنیادونه ونړول شي
نو دَ کوش په خلقو به سخت درد ولګي ۵ کوش او فوط او لود او ۵
ټول ذاتونه ګډ وډ او کوب او دَ هغې زمکې اوسیدونکي چه دَ
وعــدې ښـــامن دِي له هغوي سره به په تُورې وپرزي
۶ خداوند داسې وايي چه دَ مصر پښتیبان به پریوزي او دَ ده ۶
دَ زور فخر به کوز کړې شي له مجدال نه تر سوینې پورې هغوي
به په هغه کښې په تُورې پریوزي خداوند یهوه وايي ۷ او هغوي ۷
به دَ ویرانو ملکونو په منځ کښې ویران وي او دَ ویجاړو ښهرونو
په منځ کښې به دَ هغو ښهرونه ویجاړ وي ۸ او هرکله چه زه به ۸
مصر کښې اور بل کړم او دَ هغه ټول مددګار هلاک شي نو
هغوي به معلوم کړي چه خداوند زه یم ۹ هغه ورځ به زما ۹
ایلچیان په جهازونو سواره ځما له لوري روان شي چه غـافل
کوشیان و ډاروي او لکه چه دَ مصر په ورځ کښې وه هم هسې
به دَ هغو سخت درد وي ګوره هغه راځي
۱۰ خداوند یهوه وايي چه زه به دَ مصر ټولي دَ بابل دَ ۱۰
بادشاه نبوکدنضر له لاس نه تمام کړم ۱۱ هغه او دَ هغه ټولي ۱۱
له هغه سره چه په قومونو هیبتناک دِي دَ زمکې ویجاړولو ته
به راننه باسلې شي او هغوي به په مصر باندِ تُوره وباسي او زمکه
به له مړو ډکه کړي ۱۲ او زه به دریابونه وچ کړم او زمکه به دَ ۱۲
شریرانو په لاس خرڅه کړم او زه به هغه زمکه او ټوله آبادي
دَ هغې دَ بیګانهٔ په لاس ویران کړم ما خداوند ویلي دي
۱۳ خداوند یهوه داسې وايي چه زه به بُتان هم نیست کړم ۱۳

او له نوف به بُتان ورک کړم او بيا به دَ مصر دَ زمکي هيڅ
بادشاه نه وِي او دَ مصر په زمکي کښې به يو دهشت کيږدم
۱۴ ۱۴ او فتروس به ويران کړم او په ضوعن کښې به اور بل کړم
۱۵ او په نوا کښې به عدالت وکړم ۱۵ او په سين باندِ چه دَ مصر قوّت
۱۶ دَي خپل قهر به توي کړم او تول خلق دَ نوا به پريکړم ۱۶ او هرکله
چه زه په مصر کښې يو اور بل کړم نو سين به نهايت په عذاب
شي او نوا به دوه ټکړي شي او په نوف به هره ورځ دُښمنان وِي
۱۷ ۱۷ دَ اوين او دَ في‌بست خوانان به په تُوري پرېوزي او هغوي به
۱۸ بنديوانئِ ته ورشي ۱۸ او په تحفنس کښې به هم ورځ تياره شي هغه
وقت چه هلته کښې دَ مصر جغونه مات کړم او دَ هغه دَ قوت
کبر به په کښې تمام شي او هغه چه دي وريځ به ئي پټ کړي
۱۹ او دَ هغه لونړه به په بند لاړي شي ۱۹ په دي طور به دَ مصر
عدالتونه وکړم او هغوي به پوه شي چه خداوند زه يم
۲۰ ۲۰ دَ يولسم کال دَ ورنبئِ مياشتي په اوم تاريخ داسي وشول
۲۱ چه دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئي ويل ۲۱ چه اي
آدم زاده ما دَ مصر دَ بادشاه فرعون وزر مات کړ او گوره هغه
دَ جوړښت دَپاره وتړلي نه شه او نه په هغه باندِ پټئِ وتړلي
۲۲ شوه چه دَ تُوري نيولو دَپاره مضبوط شي ۲۲ دي دَپاره خداوند يهوه
داسي وائي گوره زه دَ مصر دَ بادشاه فرعون مخالف يم او دَده
بازوان به هغه چه قوِي او هغه چه مات شوي وه مات کړم او
۲۳ دده له لاس نه به تُوره پرېباسم ۲۳ او مصريان به دَ قومونو په
۲۴ منځ کښې تار په تار کړم او په ملکونو کښې به ئي پراگنده کړم ۲۴ او
زه به دَ بابل دَ بادشاه بازو مضبوط کړم او خپله تُوره به دَ هغه
په لاس کښې ورکړم ليکن دَ فرعون بازوان به مات کړم او دَي به
دَ هغه دَ وړاندِ دَ هغه زوبل شوِي په دود چه په مرګ وِي

زکیروي زکیروي کړي ۲۵ هو دَ بابل دَ بادشاه بازوان به مضبوط کړم ۲۵
او دَ فرعون بازوان به پریوزي او هرکله چه زه خپله توره دَ
بابل دَ بادشاه په لاس کښ ورکړم او دي ئې دَ مصر په زمکه
وغزوي نو هغوي به پوه شي چه زه خداوند یم ۲۶ او زه به مصریان ۲۶
په قومونو کښ پراګنده کړم او په ملکونو کښ به ئې تار په تار
کړم او هغوي به پوه شي چه زه خداوند یم *

# یو دیرشم باب

۱ او دَ یولسم کال دَ دریم میاشتي په ورنبي تاریخ داسي وشول ۱
چه دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئې ویل ۲ چه اي ۲
آدم‌زاده بادشاه دَ مصر فرعون او دَ ده ټولي ته وایه چه ته
پخپلي بزرګئ کښ دَ چا په شان يي ۳ ګوره اسوري دَ لبنان یو ۳
لمڅه وه چه دَ هغه ښاخونه ښائسته وُو او سوري ئې ګڼړ وه او
قد ئې لوړ وه او دَ هغه سر دَ ګڼړو ښاخونو په منځ کښ وه ۴ او ۴
اوبو لوي کړ ژورو له خپلو دریابونو نه چه دَ هغه په شا اوخوا
جاري وُو هغه ئې سربلند کړ او خپل لښتي ئې دَ میدان ټولو
ونو نه جاري کړل ۵ دي دَپاره دَ هغو اوبو له کثرت نه چه ده ۵
و بهولي دَ هغه قد دَ میدان له ټولو ونو نه بلند شه او په ده
وتوکیده نو ښاخونه ئې ډیر زیات شول او غوړکي ئې اوږده شول
۶ ټولو پرندګانو دَ هوا به دَ هغه په ښاخونو باندِ خپلي جالي ۶
جوړولي او دَ هغه تر غوړکو لاندِ به ټولو ځناورانو دَ صحرا خپل
بچي زیږول او ټول لوي لوي قومونه به دَ هغه تر سوري لاندِ اوسیدل
۷ هم هسي هغه په خپلي بزرګئ کښ دَ خپلو غوړکو دَ اوږدوالي ۷
په سبب ښائسته وه ځکه چه دَ هغه بیخ دَ ډیرو اوبو په غاړي
وُه ۸ دَ خداي دَ باغ لمڅونو هغه پټولي نه شول صنوبر دَ هغه ۸

له ښاخونو او چنارونه دَ هغه له غوړکو سره برابر نه وُو او دَ
٩ خداي دَ باغ هيڅ وني داسي ښائست نه لاره ٩ ما هغه ته دَ هغه
دَ غوړکو دَ فراوانئ په سبب حسن ورکړ تر دي حده چه دَ عدن
ټولي وني چه دَ خداي په باغ کښ وي په هغه ئي غيرت راته
١٠ ١٠ ځکه خداوند يهوه داسي وائي دي دَپاره چه تا خپل ځان
سربلند کړ او هغه خپل سر دَ گڼړو ښاخونو له منځ نه اوچت کړ
١١ او دَ هغه په زړه کښ په خپلي بلنديِ پورته شه ١١ دي دَپاره ما
هغه له غير قومونو دُ يوه زبردست په لاس ورکړ په يقين به
هغه له ده سره سلوک وکړي ما دي دَده دَ شرارت په سبب
١٢ وشاړه ١٢ او بيگانه خلقو چه دَ قومونو هيبتناک دِي هغه ئي پريکړي
او دَي ئي پريښودلي په غرونو او په ټولو خوړنو دَ هغه ښاخونه پرېوتلي
دِي او دَ زمکي دَ ټولو ويالو په گرداگرد دَ هغه غوړکي ماتي شوي
دِي او ټول خلق دَ زمکي دَ هغه له سورِي نه وتلي دِي او پريښودلي
١٣ ئي دَي ١٣ او دَ هغه په خرابئِ باندِ به ټول پرندگان دَ هوا کښيني
١٤ او دَ هغه په غوړکو به ټول حيوانان دَ ميدان اوسيي ١٤ تا چه
له ټولو ونو نه چه دَ اوبو په غاړي دي هيڅ ونه پخپلي بلنديِ سره
دِ مغروره نه شي او خپل سرونه دِ دَ گڼړو ښاخونو په منځ کښ
اوچت نه کړي او له هغو ونو چه اوبه ځښي هيڅ يوه دِ پخپلي
بلنديِ کښ ونه دريږي ځکه چه هغوي ټول دَ مرګ په قابو کښ
ورکړي شوي دِي دَ زمکي دَ لاندِ په ځايونو کښ دَ بني‌آدم په منځ
کښ له هغو سره چه په دوغل کښ کوزيدونکي دِي
١٥ ١٥ خداوند يهوه داسي وائي چه هغه ورځ چه هغه دوزخ
ته کوز شه وير مِ پورته کړ ما په هغه ژوره ور واغوستوله
او دَ هغه سيلابونه مِ بندِي کړل او گڼړي اوبه دَ هغه دَپاره
ودريدلِي هو ما لُبنان دَ هغه دَپاره سياه‌پوش کړ او دَ هغه

۱۶ دَپاره بتولي وني دَ میدان مراوي شولي ۱۶ هغه وقت چه ما هغه
له هغو سره چه په دوغل کښں پریوزي دوزخ ته واچاول نو دَ
هغه دَ لویدلو له شور نه مِ بتول قومونه ونرهول او بتولي وني
دَ عدن او دَ لبنان مِ غوره کړي او له بتولو بښه چه اوبه څښي
۱۷ دَ زمکي دَ لاندِ به تسلي موږي ۱۷ هغوي هم له هغه سره او ترهغوي
پورې چه په توري مره شوي دي په دوزخ کښں کوز شول او هغوي
هم چه دَ هغه بازو وه او دَ غیر قومونو په منځ کښں دَ هغه تر
سوري لاندِ اوسیدل
۱۸ ۱۸ ته په شان او شوکت کښں دَ عدن له ونو دَ کومي یوي په
دود یي لیکن ته به دَ عدن له ونو سره دَ زمکي په لاندِ ځایونو
کښں وغورزاوه شي ته به له هغوي سره چه په توري وژلي شوي
دي دَ نامختونو په منځ کښں به پروت اوسي دغه فرعون او دده
بتول جماعت دئ خداوند یهوه وایي ❊

# دودیرشم باب

۱ ۱ دَ دولسم کال دَ دولسمي میاشتي په ورنبي تاریخ داسي وشول چه
۲ دَ خداوند کلام و ما ته ورسید او وئي ویل ۲ اي آدمزاده دَ
مصر په بادشاه فرعون باندِ ویر پورته کړه او ورته ووایه چه
ته دَ قومونو دَ زمري بچي په دود او دَ دریابونو دَ نهنګ په شان
یي تا په خپلو دریابونو غورزنګ وکړ او تا پخپلو پښو سره اوبه
۳ لاندِ باندِ کړي او دَ هغو دریابونه دِ خړ کړل ۳ خداوند یهوه داسي
وایي چه زه به دَ ډیرو قومونو بتولي واخلم په تا باندِ به خپل جال
۴ وولم او هغوي به تا ځما په جال کښں باهر راوباسي ۴ نو زه به
تا په زمکه پریږدم او په ارت میدان به دِ وغورزوم او بتول مرغان
دَ هوا به په تا کښنیوم او یه تا به بتول درندګان دَ زمکي ماړه کړم

۵ ۵ او ستا غوښې به په غرونو وغورزوم او خوړونه به ستا له
۶ لويئ ډک کړم ۶ او زه به هغه زمکه چه ته ئې په اوبو کښې لامبو
وهې تر غرونو پورې ستا په وينو کښې ولمبوم او ولې به له تا
۷ نه ډکې شي ۷ او هرکله چه زه تا مړ کړم نو آسمانونه به پټ کړم
او دَ هغه ستورې به تياره کړم او نمر به تر اوريځ لاندې پټ کړم
۸ او سپوږمۍ به خپله رڼا نه کوي ۸ او زه به دَ آسمان ټول روښانه
ستورې په تا باندې تاريک کړم او زه به ستا په زمکه تياره کيږدم
۹ خداوند يهوه وائي ۹ او دَ ډيرو قومونو زړونه به آزرده کړم
ستا په شکسته‌حالئ دَ اُمتونو په منځ کښې په ملکونو کښې چه
۱۰ ته ئې نه پيژنې ۱۰ بلکه ډير قومونه به ستا په حال حيران کړم او
دَ هغو بادشاه به ستا په سبب ډير دهشت وخوري هرکله
چه زه دَ هغو دَ وړاندې خپله تُوره وښيروم او له هغوی نه
به هر يو دَ خپل ځان دَ پاره ستا دَ پريوتلو په ورځ هردم وترهيږي
۱۱ ۱۱ ځکه چه خداوند يهوه داسې فرمائي چه دَ بابل دَ بادشاه تُوره
۱۲ به په تا راشي ۱۲ دَ زورا ورو په تُورې سره چه دَ ټولو قومونو په
منځ کښې هيبتناکه دَه زه به ستا ټولې پربباسم او هغوی به دَ
۱۳ مصر دبدبه خرابه کړي او دَ هغه واړه ټولې به نيست شي ۱۳ او
زه به دَ هغه ټول ځناوران دَ ګنړو اوبو له غاړې نابود کړم
او بيا به نه دَ انسان پښې هغه خړې کړي او نه به ئې دَ حيوان
۱۴ سمونه خړې کړي ۱۴ پس زه به دَ هغو اوبه صافې کړم او دَ هغو
۱۵ درياب‌ونه به دَ تيلو په دود بهوم خداوند يهوه وائي ۱۵ هرکله
چه زه دَ مصر زمکه ويرانه کړم او هغه مُلک به له هغو نه
چه په چا ډک وه خالي شي هرکله چه زه ټول اوسيدونکي دَ هغه
۱۶ ووژنم نو هغوی به وپوهيږي چه زه خداوند يم ۱۶ دا هغه وير دې
چه پرې ئې وکړي دَ قومونو لونړه به په هغه باندې وير وکړي په

مصر او دَ هغه ټول جماعت به پرې وِير وکړِي خداوند يهوه وائِي
١٧ ١٧ دَ دولسم کال دَ مياشتي په پنځلسمه ورځ هم داسي
١٨ وشول چه دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئې ويل ١٨ اَے
اي آدمزاده دَ مصر په ټولي باندِ هَيهاي کوه او هغه او دَ
نامدارو قومونو لوڼه له هغو سره چه په دوغل کښې کوزيږِي دَ
١٩ زمکي په لاندِ لاندِ ځايونو کښې وغورزوه ١٩ په ښائست کښې څوک
٢٠ له تا نه زيات وُه کوز شه او له نامختون سره پروت اوسه ٢٠ هغوي
به دَ هغه په منځ کښې پريوزِي چه په تُوري سره دِي هغوي وتُوري
ته سپارلي شوي دِي هغه او دَ هغه ټول ټولي په ځکولو سره بوزه
٢١ ٢١ هغوي چه دَ زوراورو په منځ کښې له ټولو زوراور دِي دَ دوزخ
له منځ نه او له هغو سره چه دَ هغه مددکار دِي خبري کونکي
به وِي هغوي کوز شول هغوي نامختون (قرار) پراته دِي په تُوري وژلي شوِي
٢٢ ٢٢ اسور او دَ هغه ټول ټولي هلته کښې دِي دَ هغو په څاورو لوري
٢٣ ئې قبرونه دِي ټول وژلي شوِي له تُوري پريوتلي دِي ٢٣ چه قبرونه
ئې دننه دَ دوغل په بيخ کښې دِي او دَ هغه ټول ټولي دَ هغه دَ
قبر په ګرداګرد دِي ټول وژلي شوِي په تُوري پريوتلي دِي چه دَ
٢٤ ژوندېو په زمکي کښې دَ هيبت خورولو سبب وُو ٢٤ ايلام او دَ
هغه ټول ټولي چه دَده دَ قبر په ګِرداګِرد دِي هلته کښې دِي ټول
وژلي شوِي په تُوري پريوتلي دِي هغوي دَ زمکي دَ لاندِ په ځايونو
کښې نامختون کوز شول چه دَ ژوندېو په زمکي کښې دَ هيبت
سبب وُو ليکن دوي له هغوي سره چه دوغل ته ور پريوزِي
٢٥ شرمندګِي پورته کړي دَه ٢٥ هغوي دَده دَپاره او دَ هغه دَ ټول ټولي
دَپاره دَ وژليو په منځ کښې يوه بچاونړه غوړولي دَه دَ هغه
قبرونه دَ هغه په ګِرداګِرد دِي ټول واړه نامختون دَ تُوري سره
پراته البته هغوي دَ ژوندېو په زمکه کښې دَ هيبت باعث وُو

لیکن هغوي له هغوي سره چه په دوغل کښ پریوزي رسوائي ئي
۲۶ پورته کړي دَه هغوي دَ وژلیو په منځ کیښولي شول ۲۶ مسک او
توبل او دَ هغه ټول ټولي هلته کښ دِي دَ هغه قبرونه دَ هغه
په ګرداګرد دِي ټول واړه نامختون په توري وژلي البته هغوي دَ
۲۷ ژوندیو په زمکه کښ دَ هیبت باعث وُو ۲۷ هغوي به له هغو
بهادرانو سره چه له نامختونو نه پریوتل چه دَ خپل جنګ له وسلو
سره ودوزخ ته ورکوز شول پراته به نه اوسي؟ هغوي دَ هغو
توري دَدوي تر سرونو لاندِ ښبي دِي لیکن دَ هغو بدئ دَ هغو په
هډوکو دِي سره له دي چه هغوي دَ ژوندیو په زمکي کښ دَ
۲۸ بهادرانو دَ هیبت باعث وُو ۲۸ او ته به دَ نامختونو په منځ کښ
۲۹ مات کړي شي او دَ توري له مقتولانو سره به څملي ۲۹ هلته کښ
ادوم دَ هغه بادشاه او دَ هغه ټول شاهزادګان دَدوي دَ قوتونو
سره نوهم دَ توري له مقتولانو سره کیښودلي شوي دِي هغوي
به له نامختونو سره او له هغو سره چه په دوغل کښ کوزیږي پراته
۳۰ اوسي ۳۰ دَ شمال شاهزادګان ټول واړه او ټول صیداني چه له وژلیو
سره کوز شول هلته کښ دِي هغوي سره له دهشت خپل دَ خپلي
زوراوري په باب شرمنده شول هغوي به دَ توري له وژلیو
سره نامختون پراته وِي له هغوي سره چه په دوغل کښ کوز
۳۱ شول پخپله به خپله رسوائي پورته کړي ۳۱ فرعون به هغوي
ووینِي او هغوي به دَ خپل ټول جماعت په باب تسلي ومومي
هو دَ فرعون او دَ هغه دَ ټول لښکر په باب چه په توري
۳۲ وژلي شوي دِي خداوند یهوه وایي ۳۲ ځکه چه ما دَ ژوندیو
په زمکي کښ دَ هغه هیبت واچاوه او هغه به دَ توري له
وژلیو سره دَ نامختونانو په منځ کښ کیښودلي شي هو فرعون
او دَ هغه واړه ټولي خداوند یهوه وایي *

# دري ديرشم باب

۱ ۲ ۱ او بيا دَ خداوند کلام ماته راورسيده او و ني ويل ۲ چه اي
آدمزاده نه دَ خپل اُمّت و فرزندانو ته ووايه او داخبره وکړه
چه هرکله چه زه په کومي زمکي بانډ توره چلوم او دَ هغي زمکي
خلق دَ خپل مېنځَ له سړيو نه يو ونيسي او هغه خپل نګهبان
۳ ودروِي ۳ او چه توره په زمکي راتلونکي ووېني نو توريِ دِ ووهِي
۴ او خلق دِ خبردار کړي ۴ پس هرڅوک چه دَ توريِ آواز واوري او
خبردار نه وِي او توره راشي او و ني نيسي نو دَ دغه خون به هم
۵ د دغه په سر وِي ۵ ځکه چه دغه دَ توريِ آواز واوريده او خبردار
نه شه نو دَدغه خون به دَدغه په ځان وِي ليکن هغه چه خبردار
۶ اوسي نو خپل ځان خلاصوِي ۶ او که نګهبان توره ووېني چه راځي
او توريِ ونه وهِي او خلق خبردار نه شِي او توره راغله او دَ
هغو له مېنځ نه څوک ونيسي هغه خو پخپلي بدکاريِ کښ ونيولَ
شه ليکن زه به دَ نګهبان له لاس نه دَ هغه دَخون بازخواست
۷ وکړم ۷ نو ته اي آدمزاده چه ماته دَ اهل اسرائيل نګهبان مقرّر
کړي يي څما دَ خولي خبري واوره او څما له طرف نه هغوِي خبردار
۸ کړه ۸ هرکله چه زه شرير ته ووايم چه اي شريرَ ته به يقيناً
مړ شي او که ته شرير ته ونه وايي او هغه دَ هغه په بدراهيِ
خبردار نه کړي نو هغه شرير خو به په خپلي بدکاريِ کښ مړ شِي
۹ ليکن زه به ستا له لاس نه دَ هغه دَخون بازخواست وکړم ۹ او
که ته هغه شرير خبردار کړي چه دَي له خپلي لاري واوړي نو
که دي له خپلي لاري وانه وړي نو دَي به په خپلي بدکاريِ کښ
¶ ۱۰ مړ شِي مګر تا خپل ځان خلاص کړي دَي ¶ ۱۰ آ دي دَپاره اي آدمزاده
ته دَ اسرائيل کور ته ووايه چه تاسي داخبره کوئِ وائِ چه که

په حقیقت کښې ځمونږ خطاګانې او ځمونږ ګناهونه په مونږ باندِ دي
او مونږ په هغه کښې مره کیږُو نو مونږ به څرنګ ژوندِي شُو
۱۱ ۱۱ ته هغوي ته ووایه چه خداوند یهوه وائِي چه لکه چه زه
حيّ یم چه دَ شریر په مړکیدلو زه نه خوښیږم بلکه په دي
چه شریر له خپلي لاري پستنه راشي او ژوندي شي بیرته راشئِ
تاسي له خپلو بدو لارو بیرته راشئِ تاسي به ولي مرئِ اي دَ
۱۲ اسرائیل کورَ ۱۲ دي دَپاره اي آدمزاده دَ خپل اُمّت وزامنو ته ووایه
چه دَ رښتني رښتیا دَده دَ ګناه په ورځي کښې به ئې خلاص نه کړِي
او دَ شریر شرارت چه دَيِ هغه ورځ چه دي له خپل شرارتَ بیرته
راشي نو هغه به دَدغه په سبب ونه پرزِي او رښتني به دَ
خپلي رښتیا په سبب هغه ورځ چه دَي ګناه وکړِي ژوندي کیدلي
۱۳ نه شِي ۱۳ هرکله چه زه صادق ته ووایم چه ته به یقیناً ژوندي
شي نو که دي پخپلي رښتنئِ تکیه وکړِي او بدِي وکړِي نو دَدغه ټول
صداقت به په یاد نه شِي لیکن دَ هغي بدئِ په سبب چه ده کړي
۱۴ ده مړ به شِي ۱۴ بیا چه شریر ته ووایم چه ته به یقیناً مړ شي
نو که هغه له خپلو خطاؤ بیرته راشِي او عدالت او صداقت کړِي
۱۵ او که هغه شریر ګرو ورکړزوي او هغه چه ده لوټ کړي دِي
پستنه ئې ورکړِي او دَ ژوندانه په قانون چلیږِي او بدکارِي
۱۶ نه کوِي نو په یقین سره به هغه ژوندي وِي او مړ به نه شِي ۱۶ او
دَده له خطاؤ نه چه ده کړي دِي یوه به هم یاده کړي نه شِي
۱۷ ده عدالت او صداقت کړي دَي یقیناً به ژوندي شِي ۱۷ لیکن ستا
دَ اُمّت فرزندان وائِي چه دَ خداوند لار برابره نه دَه لیکن دوي
۱۸ چه دِي لار ئې برابره نه ده ۱۸ که صادق خپله رښتني پریږدِي
۱۹ بدکارِي کوِي نو یقیناً په هغي کښې به مړ شِي ۱۹ بیا که شریر له
خپل شرارت نه بیرته راشِي او صداقت او عدالت وکړِي نو دَ دغو

۲۰ په سبب به ژوندي شي ۲۰ په دي هم تاسي وايئ چه دَ خداوند لار
برابره نه ده اي دَ اسرائيل كورَ زه به له تاسي نه دَ هر يوه
عدالت دَ هغه دَ لاري په طور وكړم
۲۱ ۲۱ څلورمِ دَ بنديوانئِ دَ دولسم كال دَ لسمي مياشتي په
پنځم تاريخ داسي وشول چه يو سړيَ له اورشليم نه په تېښته
۲۲ وتلي وه ماته راغي او وئي ويل چه ښهر وواهه شه ۲۲ او ماښام
په وقت دَ هغه تيښتيدونكي له رسيدلو وړاندِ دَ خداوند
لاس په ما باندِ وه او خُما خوله ئي پرانسته تر هغه وقتَ پوري
چه هغه سړيَ صباح له ماته راغي هو هم هغه خُما خوله پرانسته
۲۳ او زه بيا گونگ نه وم ۲۳ پس دَ خداوند كلام ماته راورسيده
۲۴ او وئي ويل ۲۴ اي آدمزاده دَ اسرائيل دَ زمكي دَ ويرانو اوسيدونكي
داسي خبره كوي چه ابراهيم هم يو وه او دئ دَ دغي زمكي وارث
شه ليكن مونږ چه ډير يو نو زمكي په ميراث راكړي شوي -
۲۵ ۲۵ دي دپاره ته هغوي ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وائي
چه تاسي له وينو سره خوريِ تاسي وخپلو بُتانو ته سترگي
پورته كويِ او خون كويِ تاسي به زمكه په ميراث مومئِ څه ؟
۲۶ ۲۶ تاسي په خپلي توري تكيه كويِ تاسي مكروه كارونه كويِ او
هر يو له تاسي نه دَ خپل گاونډي ښځه ناپاكه كويِ تاسي به
۲۷ زمكه په ميراث مومئِ څه ؟ ۲۷ ته هغوي ته داسي ووايه خداوند
يهوه وائي چه لكه چه زه حي يم هغوي چه په ويرانو كښ
دِي په تورو به پريوزي او هغوي چه په ارت ميدان كښ
دِي درندگانو ته به ئي وركړم چه وئي نغريِ او هغوي چه په
۲۸ قلاؤ او په غارونو كښ دِي په مرگو به مړه شي ۲۸ ځكه چه
زه به دا زمكه يوه ويجاړه او ويراني كړم او دَ هغي دَ قوّت
فخر به بند شي او دَ اسرائيل غرونه به ويران وِي چي له

۲۹ تبریدونکي ۲۹ او هرکله چه ما دَ هغوي دَ ټولو مکروهو څيزونو په
سبب چه هغوي کړي دِي زمکه يوه ويجاړه او ويرانه کړي دَه پس
۳۰ دوي به پوه شِي چه زه خداوند يم ۳۰ ليکن اي آدمزاده ستا دَ
قوم فرزندان دَ ديوال په خوا پوري او دَ کورونو په آستانو باندِ
ستا په باب خبري اتري کوِي او يو بل ته هو هرڅوک له خپل
ورور سره دا خبري کوِي چه راشه که نه چه هغه خبره چه له
۳۱ خداونده راوزي واورو ۳۱ او هغوي تا ته راځي لکه چه اُمّت راځِي
او څما دَ اُمّت په دود ستا دَ وړاندِ کښېني او ستا خبري اوري ليکن
په هغوي عمل نه کوِي ځکه چه هغوي پخپلي خولي محبّت ظاهر کوِي
۳۲ ليکن دَ هغوي زړونه په حرص پسي دِي ۳۲ او ګوره ته دَ هغو دَ وړاندِ
داسي يي لکه چه دَ يو سړي ښه سرود وِي او خوش آوازه او باجه
ښه غږولي شِي ځکه چه هغوي ستا خبري اوري ليکن عمل پرِ نه کوِي
۳۳ ۳۳ او هرکاه چه دا راشِي او ګوره راځِي پس هغوي به پوه
شِي چه څمونږ په منځ کښِ يو نبي وه ٭

# څلور ديرشم باب

۲ ۱ او دَ خداوند کلام ما ته را ورسيده او وئي ويل ۲ چه اي
آدم زاده دَ اسرائيل دَ شپنو په خلاف نبوّت وکړه هو نبوّت وکړه
او ورته وايه شپنو ته چه خداوند يهوه شپنو ته داسي وايي
چه دَ اسرائيل په شپنو چه پخپله خپل ځان څروِي افسوس دَي
۳ شپانه دِ خپلِ رمي ونه څروِي څه؟ ۳ تاسي وازګي خورئ او
۴ وړيئ اغوندئ او څاربه ذبحه کوئ ليکن رمه نه څروئ ۴ تاسي
کمزوريو ته طاقت ونه باخښه او رنځوران موجوړ نه کړل او
پرېکړي مو ونه تړل او هغوي چه شړلي شوي دِي بيرته مو را
نه وستل او هغوي چه ورک شوي دِي ومو نه لټول بلکه په جبر

او په بې‌رحمۍ سره مو په هغوي حکومت کړي دی ۵ او هغوي تار ۵
په تار شول ځکه چه شپون ئي نه وه او د میدان د ټولو درندګانو
خوراک شول او پراګنده شول ۶ زما میږي په ټولو غرونو باندې او ۶
په هري لوړي اوچتي غونډۍ باندې ګمراه شولي هو زما میږي په ټول
روي زمین باندې تار په تار شولي او هیچا و نه لټولي نه ئي د هغو
تلاش وکړ ۷ دې دپاره اي شپنو تاسي د خداوند کلام واورئ ۷
خداوند یهوه وائي ۸ چه لکه چه زه حي یم اګر که زما کډي ۸
ښکار شولي هو زما کډي د هر یوه صحرائي درنده خوراک شولي
ځکه چه هیڅ شپون نه وه او زما شپنو زما د کډو تلاش ونه کړ
بلکه شپنو خپل ځانونه وڅرول او زما رمه ئي ونه څروله ۹ دې ۹
دپاره اي شپنو د خداوند کلام واورئ خداوند یهوه داسي
وائي ۱۰ چه ګورئ زه د شپنو په خلاف یم او خپله رمه به ۱۰
د هغو له لاس نه وغواړم او هغوي به له څرولو نه بند کړم
نه به شپانه خپل ځانونه وپالي ځکه چه زه به خپله رمه
د هغو له خولو خلاصه کړم چه دغه د هغو خوراک نه شي
۱۱ ځکه خداوند یهوه داسي وائي ګوره زه هم زه به د خپلو میږو ۱۱
تلاش وکړم او هغه به ولټوم ۱۲ لکه چه شپون هغه ورځ ۱۲
چه دې د میږو په منځ کښې وي چه پراګنده شوي دي خپله
رمه لټوي هم هسي به زه خپلي میږي ولټوم او هغوي به له
هره ځاي نه چه هلته کښې دوي د وریځي او د تیارې په ورځ
تار په تار شوي وي راخلاصي کړم ۱۳ او زه به ئي د ټولو قومونو ۱۳
له منځ نه بیرته راولم او له ټولو ملکونو به ئي راټولي کړم او
د هغوي وزمکي ته به ئي ورسوم او د اسرائیل په غرونو
باندې د ویالو په غاړو او د زمکي په ټولو آبادو مکانونو کښې
به ئي وڅروم ۱۴ او په ښو مرغزارو کښې به ئي وڅروم او د هغوي ۱۴

شپول به دَ اسرائیل په اوچت غرو باندِ وِي او هلته کښ به
هغوي په ښه شپاله پیدېږي او په ښاربه څراګاه کښ دَ
۱۵ اسرائیل په غرونو باندِ به څري ۱۵ هم زه به خپله رمه وڅروم
۱۶ او هغه به پنده کړم خداوند یهوه فرمايي ۱۶ زه به هغه چه
ورکه شوه ولټوم او هغه چه شړلي شوي وه بیرته راولم او
هغه چه ماته شوي وه وبه ئې تړم او رنځورانو ته به قوّت ورکړم
لیکن څاربه او زبردستان به هلاک کړم زه به هغه په عدالت
۱۷ سره وڅروم ۱۷ او تاسو اي زما رمي خداوند یهوه داسي وايي
چه زه به دَ غیلي او دَ غیلي په منځ کښ او دَ مږونو او دَ وځونو
۱۸ په منځ کښ حکم وکړم ۱۸ دا تاسي ته وړوکي خبره معلومه شوه
څه؟ چه تاسي ښه مرغذار وخورئ لیکن هم هغه مرغذار
چه پاتي شي په خپلو پښو پائمال کړئ او چه له سپینو اوبو
۱۹ نه څښئ نو هغه چه پاتي دِي په خپلو پښو ئې خړي کړئ ۱۹ او
زما رمه چه ده چه تاسي پخپلو پښو پائماله کړي ده خورئ ئې
۲۰ او هغه چه تاسي پخپلو پښو خړي کړي دِي څښي ئې ۲۰ دي دپاره
خداوند یهوه داسي وايي چه ګوره زه به دَ څربي غیلي او دَ ډنګرې
۲۱ غیلي په منځ کښ انصاف وکړم ۲۱ اګر که تاسي پخپل څنګ او
پخپله اوږه تیل وهلي دِي او ټول رنځوران مو پخپلو ښکرونو
۲۲ پوري وهلي دِي تر دي حده چه تار په تار شول ۲۲ دي دپاره
به زه دَ خپلي رمي خلاصي وکړم بیا به هیچري ښکار نه شِي
۲۳ او زه به دَ غیلي او دَ غیلي په منځ کښ فرق وکړم ۲۳ او زه به
دَ هغو دپاره یو شپون مقرّر کړم او هغه به ئې وڅروي یعني
۲۴ زما بنده داؤد به ئې وڅروِي او دي به ئې شپون وِي ۲۴ او
زه خداوند به ئې الله یم او زما بنده داؤد به دَ هغو په منځ
۲۵ کښ شاهزاده وِي ما خداوند داسي ویلي دِي ۲۵ او زه به له

هغوي سره دَ سلامتئ عهد وکړم او بد درندګان به له زمکي
نابود کړم او هغوي به په بيابان کښ په امن سره اوسي او په
۲۶ ځنګلونو کښ به اوده کيږي ۲۶ او زه به هغوي او هغه مکانونه
چه ځما دَ غره په شا او خوا دِي برکت کړم او زه به دَ هغه په
۲۷ مقرر وقت باران و وروم او دَ برکت باران به وريږي ۲۷ او دَ
پټي وني به خپلي ميوي راوړي او زمکه به خپل حاصل ورکوي
او هغوي به په امن بخپلي زمکي کښ اوسي او پوه به شي چه
زه خداوند يم هرکله چه زه دَ هغوي دَ جغ کړئ ماتي کړم او
دَ هغوي له لاس نه چه په دوي باندِ خپل خدمت کوي خلاص
۲۸ کړم ۲۸ او دوي به پس له دي دَ غير قومونو ښکار نه شي او دَ
زمکي درندګان بد ئ و نه نغري ليکن دوي به په امان سره اوسي
۲۹ او هيڅ سړيَ به دَ هغوي ويروونکي نه وِي ۲۹ او زه به دَ هغوي
دَپاره يو نامدار نهالستان ودروم او هغوي به بيا هيڅري دَ
لوږي په سبب بخپلي زمکي کښ هلاک نه شي او پس له دي
۳۰ به دَ غير قومونو طعنه و انه خلي ۳۰ او دوي به پوه شي چه زه
خداوند دَ دوي الله له دوي سره يم او چه دوي دَ اسرائيل
۳۱ کور ځما امت دي خداوند يهوه وايي ۳۱ او تاسي اي ځما رمي
ځما دَ څراګاه رمي انسان يئ زه ستاسي الله يم خداوند يهوه وايي*

# پنځه ديرشم باب

۱ ۲ ا او دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئي ويل ۲ چه اي
آدمزاده ته دَ شعير دَ غره په خلاف مخ کړه او دَده په خلاف
۳ نبوّت وکړه ۳ او هغه ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي
چه ګوره اي دَ شعير غره زه ستا په خلاف يم او په تا به خپل
۴ لاس وچلوم او تا به په ويرانئ ويران کړم ۴ او زه به ستا ښهرونه

ویجاړ کړم او ته به ویران شې او پوه به شې چه خداوند زه یم
۵ ۵ دې د پاره چه ته له قدیم نه عداوت لرې او تا بني اسرائیل د دوی
د غم په ورځ د دوی د آخرین شرارت په وقت د توري وځ ته
۶ وسپارل ۶ دې د پاره خداوند یهوه وائي لکه چه زه حي یم زه
به تا د خون د پاره مقرّر کړم او خون به درپسي شي دې د پاره چه
۷ تا له خونریزئ نه نفرت ونه کړ نو خون به په تا پسي شي ۷ هم هسي
به زه د شعیر غر په ویرانئ ویران کړم او له هغه نه به تیریدونکي
۸ او بیرته راتلونکي پریکړم ۸ او د هغه غرونه به د هغه په مقتولانو
ډک کړم د توري وژلي به ستا په غونډیو او ستا په خوړو او
۹ ستا په ټولو ویالو کښ پریوزي ۹ او زه به دِ تر ابده پوري ویران
کړم او ستا کلي به بیا آباد نه شي او تاسي به پوه شئ چه زه
۱۰ خداوند یم ۱۰ له هغه سبب چه تا وویل چه دا دوه قومونه
او دا دوه ملکونه به خما وي او مونږ به د هغه مالکان شو سره
۱۱ له دې چه خداوند هلته کښ وه ۱۱ دې د پاره خداوند یهوه
وائي لکه چه زه حي یم زه به ستا د غصّي په شان او ستا
د کینې په موافق لکه چه پخپلي کینې کښې سره دِ له هغوي سره
بدسلوکي وکړه له تا سره به وکړم او هرکله چه زه تا ته سزا
۱۲ درکړم نو زه به د هغو په منځ کښ مشهور شم ۱۲ او ته به
پوه شې چه زه هغه خداوند یم او چه ما ستا د کفر ټولي
خبري چه تا د اسرائیل د غرونو په مخالفت کښ وویلي چه
هغوي ویران شول او خمونږ د نغړدلو د پاره راکړي شول واوریدلي
۱۳ ۱۳ هم هسي تاسو خما په خلاف پخپلي خلې سره لويي کوله او خما
۱۴ په خلاف کښ مو ډیري خبري وکړي نو ما آوریدلي دي ۱۴ خداوند
یهوه داسي وائي چه هغه وقت چه ټوله دُنیا به خوشي وکړي نو
۱۵ زه به تا ویران کړم ۱۵ لکه چه تا د اسرائیل د کهر په میراث باندِ

ځکه چه هغه ویران وُه خوښي وکړه هم هسي به زه هم په
تا وکړم اي دَ شعیر غره ته او ټول ادوم به بالکل ویران
شيِ او هغوي به پوه شيِ چه زه خداوند یم ✣

# شپږ دیرشم باب

۱ آ او ته اي آدمزاده دَ اسرائیل وغرونو ته نبوّت وکړه او ووایه
۲ چه اي دَ اسرائیل غرونو تاسي دَ خداوند کلام واوريِ ۲ خداوند
یهوه داسي وايي له دغه سبب چه دُښمن له تا نه مخالفت وکړ
ویلي يې دي چه اَخ اَخ دَ قدیمو اوچتو مکانونو هم مونږ مالکان
۳ شولو ۳ دي دَپاره نبوّت وکړه او ووایه چه خداوند یهوه داسي
وایي له دي سبب چه هغوي تاسي ویران کړي يئِ او تاسي ئي
له هره لوري نغړدلي يئِ تاچه تاسي هغوي چه له غیرقومونو
نه پاتي شوي دي وراثت شيِ او تاسو دَ لافیانو په شوندو
۴ بنتلي يئِ او تاسي دَخلقو بدګوي شوليِ ۴ دي دَپاره اي دَ
اسرائیل غرونو تاسي دَ خداوند یهوه کلام واوريِ خداوند یهوه
وغرونو او غونډیو او رودونو او خوړونو او ویجاړو ویرانو
ته او هغو ښهرونو ته چه ترک شوي دي چه دَ شا او خوا
قومونو دَ باقي خلقو دَپاره دَ لوټ او دَ مسخري ځاي شوي دي
۵ داهسي وایي ۵ هو دي دَپاره خداوند یهوه داسي وایي چه په
یقین سره ما پخپل آتشي غیرت کښ دَ قومونو دَ باقي خلقو
او دَ ټول ادوم په خلاف هغوي چه دَ خپل ټول زړه له خوښي
نه او دَ زړه له عداوت نه خپل ځان ځما دَ زمکي مالک مقرّر
کړي دي تاچه دَ ښکار دَپاره هغه وشړي کلام ویلي دَي -
۶ ٦ دي دَپاره چه ته دَ اسرائیل دَ زمکي په باب نبوّت وکړه او
۷ غرونو او غونډیو او دریابونو او خوړونو ته داسي ووایه ۷ چه

خداوند یهوه داسي وايي گوره چه ما پخپل قهر او په خپل غیرت
کښ داسي وويل دي دپاره چه تاسو دَ قومونو ملامت اخستي
دي نو خداوند یهوه وايي چه ما خپل لاس پورته کړي دي،
چه یقیناً به ستاسو په گرداگرد قومونه پخپله ملامتیا پورته کړي
۸ مگر تاسي به اي دَ اسرائیل غرونو خپل ښاخونه وباسئ او ۸
خما دَ أمت اسرائیل دپاره به خپله میوه ورکړئ ځکه چه هغوي
په را رسیدلو دي ۹ ځکه زه ستاسي په لوري یم او تاسي ته ۹
به وگرزم او تاسي به یوبي کړي او کرل شئ ۱۰ او زه به سړي هم ۱۰
دَ اسرائیل ټول کور په تاسي باندِ ډیر ډیر زیات کړم او ښهرونه
به آباد شي او ویراني به آبادي کړي شي ۱۱ او زه به انسان او ۱۱
مویشي په تاسي زیات کړم او هغوي به ډیر شي او وبه غوړیږي
او زه به تاسي داسي واوسوم لکه چه په وړاندي زماني کښ وئ
او له تاسي سره به په نسبت له اول نه زیات احسان وکړم او
تاسي به پوه شئ چه زه خداوند یم ۱۲ هو زه به آدمیان یعني ۱۲
خما اسرائیل أمت په تاسي باندِ بیا وچلوم او تاسي به دَ دوي
ملکیت شئ او تاسو به دَ هغو میراث شئ او په وړاندِ به هغوي
بي اولاد نه کړئ ۱۳ خداوند یهوه داسي وايي له دغه سبب چه ۱۳
تاسو ته وايي چه اي ته چه انسان نغري او خپل قومونه دِ بي اولاد
کړل ۱۴ دي دپاره نه به ته بیا انسان ونغري او نه به بیا خپل قومونه ۱۴
بي اولاده کړي خداوند یهوه وايي ۱۵ او زه به داسي وکړم چه خلق ۱۵
به تا ته هیچري دَ غیر قومونو طعنه وانه وروي او په وړاندِ به ته
دَ قومونو ملامت وانه خلي او په آینده کښ به خپل قوم بي اولاده
نه کړي خداوند یهوه وايي
۱۶ او دَ خداوند کلام ما ته را ورسیده او وئي ویل ۱۷ چه ۱۶ ۱۷
اي آدمزاده هرکله چه اسرائیل په خپلي زمکي کښ اوسیدل نو

دوي په خپلو لارو او په خپلو کارونو هغه پلیته کړه دَ هغو
لاري ځما دَ وړاندِ دَ حیضِي ارتیني دَ هغي دَ پلیتانه غوندِ وي
١٨ ١٨ دي دَپاره ما په هغوي باندِ دَ هغي خونریزئ په سبب چه دوي
په هغي زمکي کښ توي کړي وه او دَ خپلو بتانو سره هغه ناپاکه
١٩ کړي وه خپل قهر توي کړ ١٩ او دوي مِ په غیر قومونو کښ پراگنده
کړل او دوي په ملکونو کښ تار په تار شول او ما دَ هغو دَ لارو
٢٠ او دَ هغو دَ کارونو په موافق دَ هغو عدالت وکړ ٢٠ او هرکاه چه
دوي به دَ غیر قومونو په منځ کښ هرچرته روان شول راغلل
نو هغوي ځما پاک نوم ناپاک کړ او چه دَ دغو په باب به ئي ویل
٢١ چه دا دَ خداوند اُمّت دَيَ او دَده له زمکي راوتلي دَيَ ٢١ مګر
ما ته دَ خپل پاک نامه په سبب افسوس راغي چه دغه اهل
اسرائیل دَ غیر قومونو په منځ کښ چه هلته کښ دوي روانه
٢٢ شول ناپاک کړي وه ٢٢ دي دَپاره ته دَ اسرائیل کور ته ووايه
خداوند یهوه داسي وايي چه اي دَ اسرائیل کوره ستا له خاطره
بلکه دَ خپل پاک نامه په خاطر داکوم چه دغه تاسي دَ غیر
قومونو په منځ کښ چه هلته تاسي روان شوي وِيِ ناپاک کړي
٢٣ دَيَ ٢٣ زه به خپل بزرګ نوم چه دَ غیر قومونو په منځ کښ
ناپاک کړي شوي وُه چه هغه مو دَ دوي په منځ کښ ناپاک کړي
دَيَ پاک کړم او هرکاه چه دَ هغو دَ سترګو دَ وړاندِ په تاسي
کښ مقدّس کړي شم نو غیر قومونه به پوه شِي چه زه خداوند
٢٤ یم خداوند یهوه وايي ٢٤ ځکه چه زه به تاسي له غیر قومونو
راوباسم او له ټولو ملکونو به مو راجمع کړم او تاسي به ستاسي
٢٥ وطن ته راولم ٢٥ پس له هغه به په تاسي صافي اوبه چنړکاؤ
کړم او تاسي به پاک شِئ او زه به تاسي ستاسي له ټولي کندګئ
٢٦ نه او ستاسي له ټولو بتانو پاک کړم ٢٦ او زه به تاسي ته یو

نوي زړه درکړم او ستاسي دننه به يو نوي روح کيږدم او ستاسي
له غوښي نه به سنګين زړه راوباسم او دَ غوښي زړه به درکړم
٢٧ ٢٧ او زه به دَ تاسي په ننه کښ خپل روح کيږدم او زه
به تاسي په خپلو حکمونو وچلوم او تاسي به ځما عدالتونه
٢٨ وساتئِ او عمل به پرِ وکړئِ ٢٨ او تاسي به په دي زمکي کښ
چه ما ستاسي پلرونو او نيکونو ته ورکړي ده واوسئِ او تاسي
٢٩ به ځما اُمّت شئِ او زه به ستاسي الله يم ٢٩ او زه به تاسي
ستاسي له ټولو ناپاکيو خلاص کړم او زه به غله راوغوارم
٣٠ او ډيره به يې کړم او په تاسي به قحط نازل نه کړم ٣٠ او زه به
دَ ونې په ميوو کښ او دَ پټِي په حاصلو کښ زيادت والي وکړم
تر دي حده چه تاسي به په مخ کښ دَ غير قومونو په منځ کښ
٣١ دَ قحط ملامتيا وانه خلئِ ٣١ نو تاسي به دَ خپلو بدو لاهيو او
کارونو چه نيک نه وُو ياد کړئِ او تاسي به دَ خپلو بدکاريو
او دَ نفرتناکو کارونو په سبب به په خپلو نظرونو کښ له خپلو
٣٢ ځانونو نفرت وکړئِ ٣٢ زه دا ستاسي په خاطر نه کوم خداوند
يهوه وايي دا دِ تاسي ته معلوم وِي تاسي دَ خپلو لارو په
سبب شرمندګي پورته کړئِ او پښيمان شئِ اي دَ اسرائيل کوره
٣٣ ٣٣ خداوند يهوه داسي وايي چه هغه ورځ چه زه تاسي ستاسي
له ټولو بدکاريو پاک کړم هم هغه ورځ به تاسي په خپلو ښهرونو
٣٤ کښ واوسوم او ستاسي ويران مکانونه به جوړ کړي شي ٣٤ او
هغه ويرانه زمکه چه دَ ټولو رهګذرانو په نظر کښ ويرانه پرته
٣٥ وه و به کرلي شي ٣٥ او هغوي به وايي چه دا زمکه چه خرابه
پرته وه دَ عَدَن دَ باغ په شان شوله او ويجاړ او ويران او
٣٦ خراب ښهرونه خالي زمکه او زيدلي قلاګاني آباد شول ٣٦ نو
غير قومونه چه ستا به ګِرداګِرد باقي دي و به پوهيږي چه زه

خداوند ويجاړ مکانونه آباد کوم او ويرانه باغ کوم ما خداوند
ويلي دي او هم زه به يي وکړم ۳۷ خداوند يهوه داسي وايي چه ۳۷
سره له دي هم دَ اسرائيل له کوره به طلب کړي شم تا چه زه
دَ هغو دَپاره دا وکړم زه به دَ هغو سړي دَ رمي په دود فړيوان
کړم ۳۸ لکه چه مقدسه رمه وَه او لکه چه دَ اورشليم رمه دَ ۳۸
هغه په عيدونو کښ هم هسي به ويجاړ ښهر دَ سړيو
له رمو ډک شي او هغوي به پوه شي چه زه خداوند يم ⁜

# اووه ديرشم باب

آ دَ خداوند لاس په ما باندِ وه او زه ئي دَ خداوند په روح ۱
کښ و ويستلم او په هغي خوړ کښ چه له هډوکو ډک وه زه
ئي کوز کړم ۲ او زه ئي دَ هغه په ګرداګرد وګرزولم او ګوره ۲
هغوي دَ خوړ په ميدان کښ ډير وُو او ګوره چه بيخي وچ
وُو ۳ او ما ته ئي وويل چه اي آدمزاده دا هډونه ژوندي ۳
کيدلي شي ما ئي په ځواب کښ وويل چه اي خداوند يهوه هم
ته پوهيږي ۴ بيا هغه ما ته وويل چه ته په دغو هډوکو نبوّت ۴
وکړه او هغوي ته ووايه چه اي وچو هډوکو دَ خداوند کلام
واورئ ۵ خداوند يهوه دي هډوکو ته داسي وايي چه ګورئ ۵
زه به په ستاسي کښ روح داخل کړم او تاسي به ژوندي شئ
۶ او په تاسي به رګونه کيږدم او غوښي به پري وخيژوم او ۶
تاسي ته به څرمن در واغوندوم او په تاسي کښ به روح کيږدم
او تاسي به ژوندي شئ او پوه به شئ چه زه خداوند يم ۷ پس ۷
ما لکه چه راته فرمايلي شوي وُو نبوّت وکړ او چه ما نبوّت
کاوه نو يو شور وه او ګوره يوه لړزيدنه شوه او هډونه
ځبله مليا شول هر يو هډوکي له خپله هډوکي سره ۸ او چه ۸

ما نظر وکړ نو ګوره چه رګونه او غوښي په هغوي وختل او
په هغو دَ څرمني پوشاک شه ليکن په هغو کښ روح نه وُه
۹ ۹ پس هغه ما ته وويل چه ته نبوّت وکړه اي آدمزاده او هوا
ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي چه اي روح ته له څلورو
۱۰ هواؤ نه په دي وژليو پو کړه چه ژوندي شي ۱۰ پس ما لکه
چه راته فرمايلي شوي وُو نبوّت وکړ او په هغوي کښ روح
راغي او ژوندي شول او په خپلو پښو ودريدل يو بي اندازه لوي
۱۱ لښکر ۱۱ نو هغه ما ته وويل چه اي آدمزاده دا هډوونه ټول دَ
اسرائيل کور دي ګوره دا وايي چه ځمونږ هډوونه وچ شول او
۱۲ ځمونږ اميد لاړ شه مونږ خو بالکل پرې کړلي شولو ۱۲ دي دَپاره
ته نبوّت وکړه او هغوي ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي
چه ګورئ اي ځما اُمّتَ زه به ستاسي قبرونه پرانزم او تاسي
به ستاسي له قبرونو راوباسم او دَ اسرائيل وزمکي ته به مو
۱۳ راولم ۱۳ او اي ځما اُمّتَ هرکله چه زه ستاسي قبرونه پرانزم
او تاسي دَ خپلو قبرونو باهر راوباسم نو به پوه شئ چه خداوند
۱۴ زه يم ۱۴ او زه به خپل روح په تاسي کښ کيږدم او تاسي به
ژوندي شئ او زه به تاسي په خپلي زمکي کښ کيږدم پس تاسي
به پوه شئ چه ما خداوند وويل او پوره م کړل خداوند فرمايي
۱۵ ۱۶ ۱۵ بيا دَ خداوند کلام ما ته راورسيده او وئي ويل ۱۶ چه
اي آدمزاده ته دَ خپل ځان دَپاره يو لرګي واخله او په هغه
وليکه دَ يهوداه دَپاره ٭بيا[#] يو لرګي واخله او په هغه دا وليکه
دَ يوسف دَپاره چه دَ افرائيم امسا وُه او ټول کور دَ اسرائيل
۱۷ دَ هغه دَ رفيقانو دَپاره ۱۷ او هغه دواړه سره جوړه کړه تا چه
۱۸ هغوي يو لرګي شي او هغوي ستا په لاس کښ يو شي ۱۸ او هرکله
چه ستا دَ قوم ځامن له تا نه پوښتنه وکړي او وايي چه له

# او بني اسرائيل دَ هغو رفيقانو دَپاره

دي کاردنو سره ستا څه واسطه ده ته به يي موږ ته راونه ښيي
څه ؟ ۱۹ نو ته هغوي ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي چه ۱۹
ګوره د يوسف لرګي چه د افرائيم په لاس کښ دي او د هغه
د رفيقانو چه د اسرائيل فرقي دي واخلم او د هغه سره هو
د يهوداه د لرګي سره به يي ملبا کړم او هغوي به يوه امسا کړم
او هغوي به زما په لاس کښ يو شي ۲۰ او هغه لرګي چه ته پر ۲۰
ليکي د هغو د سترګو د وړاندې به ستا په لاس کښ وي ۲۱ او ته ۲۱
هغوي ته ووايه چه خداوند يهوه داسي وايي چه ګوره زه به
بني اسرائيل د غير قومونو له منځ نه هر څرنه چه دوي تلي دي
راونيسم او له هره لوري به يي راټول کړم او دوي به وخپلي
خاوري ته راولم ۲۲ او زه به دوي په هغه زمکه کښ د اسرائيل ۲۲
په غرونو باندې يو قوم کړم او يو بادشاه به په دغو ټولو
بادشاه وي او بيا به دوي دوه قومونه نه شي او بيا به هيڅري
په دوو ملکونو کښ وويشلي نه شي ۲۳ او هغوي به هيڅري ۲۳
خپل ځان له خپلو بتانو او له خپلو نفرتي څيزونو او له
خپلو خطاکاريو نه ناپاک نه کړي ليکن زه به هغوي د هغوي
له ټولو مکانونو چه هلته کښ هغوي ګناه کړي ده خلاص کړم
او پاک به يي کړم نو به هغوي زما امت وي او زه به د هغو
الله يم ۲۴ او زما بنده داود به د هغوي بادشاه وي او د ۲۴
هغوي ټولو به يو شپون وي او هغوي به زما په عدالتونو
ځي او زما حکمونه به وساتي او عمل به پري وکړي ۲۵ او دوي ۲۵
به په هغي زمکي کښ چه هغه ما خپل بنده يعقوب ته ورکړي
ده چه هلته کښ ستاسي پلرونه او نيکونه اوسيدل واوسي
او دوي او د دوي اولاد او د دوي د اولاد اولاد به مدام په
هغه کښ واوسي او زما بنده داود به د هميشه دپاره د

۲۶ هغو شاهزاده وِي ۲۶ او زه به له هغوي سره دَ سلامتئ عهد وکړم
نو دغه به له هغوي سره ابدِي وعده وِي او زه به ئ ورکړم او
زيات به ئ کړم او دَ هغوي په منځ کښ به خپل مقدّس ترهيشه
۲۷ پوري کيږدم ۲۷ او ځما مسکن به هم له هغوي سره وِي هو زه به دَ
۲۸ هغوي الله يم او دوي به ځما اُمّت وِي ۲۸ او هرکله چه ځما مقدّس
دَ هميشه دَپاره دَ هغو په منځ کښ وِي نو غير قومونه به
پوه شِي چه زه خداوند دَ اسرائيل مقدّس کونکيَ يم ✣

# اته ديرشم باب

۱ ۲ ۱ او دَ خداوند کلام ماته را ورسيده او وئي وي ۲ چه اي آدمزاده
نه دَ جوج چه دَ ماجوج دَ زمکي دئ او دَ روش او دَ مسک او
دَ توبال دَ شاهزاده په خلاف خپل مخ کړه او دَ دغه په خلاف
۳ نبوّت وکړه او ووايه ۳ چه خداوند يهوه داسي وايِي چه ګوره اي
جوجَ دَ روش او دَ مِسک او دَ توبال شاهزاده زه ستا په خلاف
۴ يم ۴ او زه به دِ وګرزوم او ستا په ژامو به ببنکونه کيږدم او
ستا او ستا دَ ټول لښکر او دَ آسونو او دَ سوارو چه ټول
زغري پوشه دِي يو لوي ټولِي چه سپرونه او ډالونه لرِي او
۵ ټول واړه تورِي نيوونکِي دِي هغوي به را وباسم ۵ او له هغوي سره
فارس او کوش او فوط ټول واړه له ډالونو او خولونو سره جومړ
۶ او دَ هغه ټول لښکر ۶ او له قطبَ لري اطرافونه دَ تجرمي خيل
۷ او دَ هغه ټولي لښکري ډير خلق چه ستا سره دِي ۷ نه تيار شه
او دَ ځان دَپاره تياري وکړه ته او ستا ټول جماعتونه چه تا
۸ ته جمعَ شوي دِي او ته دَ هغو امير يي ۸ او پس له ډيرو
ورځو به ستا بازخواست وشِي او ته به دَ کالونو په آخر کښ
يه هغي زمکي چه دَ تورِي نه ستنه شوي دَه او چه دَ ډيرو قومونو

له مینځ نه ټوله کړي شوي دَه دَ اسرائیل په غرونو چه له قدیم
نه ویران وُو را و به خیژي لیکن هغه له ټولو قومونو نه
رابستلي شوي دي او هغوي واړه به په آرام استوګنه کوي ۹ ته ۹
به را و خیژې او دَ سیلۍ په دود به راشي ته به دَ وریځي په
دود زمکه پټه کړي ته او ستا ټولي لښکري او ډیر خلق له
تا سره ۱۰ خداوند یهوه وایي چه داسي به هم وشي چه په هغي ۱۰
ورځي به ډیري ډیري خبرې ستا په زړه کښ راشي او ته به
یوه بده اندیښنه وکړي ۱۱ او ته به ووایي چه زه به دَ بي کوټو ۱۱
کلیو په زمکه و خیژم زه به په هغو چه په خوښۍ کښ دي
او په آرام سره اوسي چه ټول به بې قلا کښ اوسي او ارګونه
او دروازي نه لري ۱۲ تا چه زه ئې لوټ وکړم او مال ئې وشوکوم ۱۲
او ته به خپل لاسونه په هغو ویرانو باندې چه اوس آبادي شوي
دي او په هغو خلقو چه له ټولو قومونو راجمع شوي دي چه
څاروي او مال ئې حاصل کړي دي او چه دَ زمکي په منځ باندي
اوسي وچلوي ۱۳ دَ سبا او دَدان او دَ ترسیس سوداګران او ۱۳
دَ هغوي ټول ځوانان ببر زمري به تا ته ووایي چه ته دَ لوټولو
دَپاره راغلي څه؟ تا خپل جمعیت ددي دَپاره جمع کړي دي
چه ښکار را ونیسي او سپین او سره زر واخلي او څاروي
او مال یوزي او لوي لوټ وکړي
۱۴ دي دَپاره اي آدمزاده نبوّت وکړه او جوج ته ووایه چه ۱۴
خداوند یهوه داسي وایي چه هغه ورځ چه ځما اسرائیل خلق
په خوښۍ سره و اوسي ته به خبر نه یي څه؟ ۱۵ او ته به له ۱۵
خپل ځای نه دَ شمال له لري اطرافو نه راشي ته او ډیر خلق
له تا سره چه ټول واړه به په آسونو سواره وي یو لوی جمعیت
او درونډ لښکر ۱۶ ته به ځما دَ اسرائیلي خلقو دَ خلاف کولو ۱۶

دپاره راشي او زمکه به دَ اوريځي په شان پټه کړي دا به په
آخرينو ورځو کښې وشي او زه به دِ دَ خپلې زمکي په خلاف
راولم تاچه غير قومونه مِ وپيژني هرکله چه زه اي جوجَ
۱۶ دَ هغو دَ سترګو دَ وړاندِ په تا کښې پاک شم ۱۷ خداوند يهوه
داسي وايي ته هغه يې ځه؟ چه دَ هغه په باب ما په وړاندِني
زماني کښې دَ خپلو خدمتګذارو اسرائيلو نبيانو په معرفت چه
په تيروشويو کالونو او ورځو کښې يې نبوّت کاوه وويل چه زه
۱۸ به دِ دَ هغو په خلاف راولم ۱۸ او داسي به وشي چه په هغو
ورځو کښې چه جوج دَ اسرائيل دَ زمکي په خلاف راشي نو ځما
قهر به ځما په سپږمو کښې پورته شي خداوند يهوه وايي -
۱۹ ۱۹ ځکه چه ما په خپل غيرت او دَ قهر په اور کښې ويلي
دِي په يقين سره به هغه ورځ دَ اسرائيل په زمکه کښې يوه
۲۰ لويه زلزله شي ۲۰ تردي حده چه دَ سمندر کبان او دَ آسمان
پرندګان او دَ زمکي واشيان او ټخيدونکي چه په زمکه ښخيږي
او ټول سړي چه په مخ دَ زمکي دِي ځما دَ وړاندِ به وترهيږي
او غرونه به وا‌ړول شي او لوي برجونه به پريوزي او هر يو ديوال
۲۱ به په زمکي ونړيږي ۲۱ او زه به له خپلو ټولو غرونو نه په هغه يوه
توره راوغوارم خداوند يهوه وايي او دَ هر انسان توره به دَ هغه
۲۲ دَ ورور په خلاف وِي ۲۲ او زه به په وبا او په وينو سره سزا ورکړم او
په ده بانِد به او دَده په لښکرو او په هغو ډيرو خلقو چه له ده
سره دِي يو سخت باران او لوي لوي ږلئ او اور او ګوګړ و وروم -
۲۳ ۲۳ او زه به خپله بزرګي او پاکي پري وکړم او دَ ډيرو خلقو په
نظر کښې به وپيژندلي شم او پوه به شي چه زه خداوند يم *

## نه ديرشم باب

۱ ۱ دي دَپاره ته اي آدم زاده په خلاف دَ جوج نبوّت وکړه او ووايه

چه خداوند يهوه داسي وايي چه گوره زه ستا مخالف يم اي
جوج دَ روش او دَ مسک او دَ توبال شاهزاده ۲ او زه به تا ۲
وا ړوم او تا به راولم او زه به دِ دَ شمال له اطرافو راوخېژوم
او تا به دَ اسرائيل په غرونو راولم ۳ او ستا لينده به ستا ۳
له کيڼ لاس ووهم او ستا غشي به ستا له ښي لاس نه
پرېباسم ۴ ته به دَ اسرائيل په غرونو وپرزي ته او ستا ټولې ۴
لښکري له هغه ټولو قومونو چه له تا سره دِي او زه به تا
دَ هر قسم ښکاري درندگانو او دَ ميدان دَ درندگانو دَ
نغړدلو دَپاره ورکړم ۵ ته به په ارت ميدان کښ وپرزي ځکه ۵
چه هم ما دا ويلي دِي خداوند يهوه وايي ۶ او زه به په ماجوج ۶
باندِ او په هغو باندِ چه په جزيرو کښ په بې پروايئ سره استوگنه
کوي يو اور واستوم او هغوي به پوه شِي چه زه خداوند يم
۷ او زه به خپل مقدّس نُوم دَ خپل اُمّت اسرائيل په منځ کښ ۷
ظاهر کړم او بيا به ئې زه پرې نه ږدم چه دوي زما پاک نُوم ناپاک
کړِي او غير قومونه به پوه شِي چه زه خداوند او په اسرائيل
کښ قدّوس يم ۸ گوريئ هغه راغئ او شوي دئ خداوند يهوه ۸
وايي دا هغه ورځ دَه چه دَ هغې په باب مِ ويلي دِي ۹ پس هغوي ۹
چه دَ اسرائيل په ښهرونو کښ اوسي را وبه وزي او په وسلو
سره به اورونه بلوِي هم کنگل او ډالونه او ليندي غشي او
بالي او برچي او دوي به دغه تر اوو کالونو پوري په اور سوځوي
۱۰ تر دي حده چه دوي به له ميدان لرگي نه راوړي او نه به ۱۰
ئې له هغو ځنگلو پرېکوِي ځکه چه دوي به په وسلو سره اورونه
بلوِي او دوي به هغوي چه دوي ئې لوټ کړي دِي لوټ کاندِ
او له هغوي نه چه دوي شوکولي دِي شوکه به وکړِي خداوند
يهوه وايي

۱۱ اا او هغه ورخ به داسي وشي چه زه به هلته كښ په
اسرائيل كښ جوج ته يو كورستان وركړم يعني دَ لاري تيريدونكي
خوړ چه دَ سمندر په مشرق طرف دي له هغه به دَ لاري
تيريدونكي بند شي او دوي به هلته كښ جوج او دَ هغه واړه
۱۲ ټولي ښخ كاندِ او هغي ته به دَ هامان دَ جوج خوړ وايي ۱۲ او
تر اوو مياشتو به ئي بني اسرائيل ښخ كړي تاچه زمكه صافه
۱۳ كړي ۱۳ هو دَ هغي زمكي به ټول خلق هغوي ښخ كوي او دا به
دَدوي دَپاره دَ ناموريُ سبب شي هغه ورخ چه بزرگي بياموم
۱۴ خداوند يهوه وايي ۱۴ او دوي به څو سړي بېل كړي چه په دي
كار كښ مدام مشغول اوسي او هغوي چه په زمكي تيريږي دَ
لاري تيريدونكيو په مدد سره به هغوي چه دَ زمكي په مخ پراته
دِي ښخ كوي تاچه دوي ئي صاف كوي او پس له اوو مياشتو
۱۵ به ئي تالاش وكړي ۱۵ او تيريدونكي به په هغي زمكي تيريږي نو
چه له دغونه څوك دَ چا سړي هډوكي ويني نو هغه څنګه به
يو نشان ودروي تر هغه چه ښخ كونكي ئي دَ هامون جوج په
۱۶ خوړ كښ ښخ كړي ۱۶ او ښهر ته به هم هامونا ويلي شي دوي
به په دي شان سره زمكه پاكه كړي
۱۷ ۱۷ او اي آدم زاده خداوند يهوه وايي چه ته هر يوه پردار
مرغه او دَ ميدان هر يوه درنده ته ووايه چه تاسي جمع شئ
او راشئ خما په هغي ذبحي باندِ له هره لوري جمع شئ چه زه ئي
ستاسي دَپاره ذبحه كوم هو دَ اسرائيل په غرونو باندِ په يوي
۱۸ لوي ذبحي تاچه غوښي وخورئ اوويني وڅښئ ۱۸ تاسي به دَ
بهادرانو غوښي وخورئ او دَ زمكي دَ شاهزادګانو ويني به
وڅښئ هو دَ مږونو او دَ وريو او دَ بزو او دَ سخوندرو ټول
۱۹ واړه دَ بسن څاربه دِي ۱۹ او تاسي به خما دَ ذبحي چه ما ستاسي

دَپاره ذبحه کړي دَه دومره وازګي وخورئ چه ماړه به شئ او
دومره وینې به وڅښئ چه مست به شئ ٢٠ هم داسې به تاسې ٢٠
ځما په دسترخوان باندِ له آسونو او له سوارو او له بهادرانو
او له ټولو جنګیالیو سره ماړه شئ خداوند یهوه وائي ٢١ او زه ٢١
به دَ غیر قومونو په منځ کښ خپله بزرګي کیږدم او ټول غیر قومونه
به ځما هغه عدالت چه ما کړې دې او ځما هغه لاس چه په
هغوي باندِ مِ ایښې دې ووینې ٢٢ نو دَ اسرائیل کور به پوه شي ٢٢
چه له هغې ورځې را په هسته زه خداوند دَ هغو الله یم -
٢٣ او غیر قومونه به پوه شي چه دَ اسرائیل کور دَ خپلو ٢٣
بدکاریو په سبب په بند لاړ شول ځکه چه دوي له مانه یاغي
شول دي دَپاره مِ له هغوي خپل مخ پټ کړ او دوي مِ دَدوي
دَ دښمنانو په لاس ورکړل نو دوي ټول واړه په توري پریوتل
٢٤ دَ هغوي دَ ناپاکئ او دَ هغوي دَ ګناهونو په موافق ما له ٢٤
دوي سره وکړل او خپل مخ مِ ورنه پټ کړ
٢٥ او سره له دې خداوند یهوه داسې وائي چه اوس به ٢٥
زه دَ یعقوب بندیوانې را وګرزوم او په ټول ټبر دَ اسرائیل به
رحم وکړم او دَ خپل مقدّس نوم دَپاره به غیور شم ٢٦ او دوي ٢٦
به خپلې رسوائې پورته کړي او دَ هغو ټولو بې وفائې هم چه
هغوي له ما سره بې وفائي وکړه هغه وقت چه په خپله زمکه کښ
په آرام سره اوسېدل او هیڅوا نه ویرول ٢٧ هرکله چه زه دوي ٢٧
له خلقو نه پسته راولم او دوي دَدوي دَ دښمنانو له زمکو
را ټول کړم او دَ ډیرو قومونو په نظرونو کښ به زه دَدوي په
منځ کښ پاکې بیاموموم ٢٨ پس دوي به پوه شي چه زه دَدوي ٢٨
خداوند الله یم ځکه چه ما دوي دَ غیر قومونو په بند
بیولې وُو او چه ما دوي دَدوي په مُلک کښ را جمع کړي دي

۲۹ او له دوي نه به یو هم هلته کښې پرېنږدم ۲۹ او زه به بیا
هیڅرې له دوي نه خپل مخ پټ نه کړم ځکه چه زه به خپل
روح په بني اسرائیل باندې توي کړم خداوند یهوه وایي ٭

# څلوېښتم باب

۱ آخوندږ دَ بندیوانۍ په پنځه ویشتم کال او دَ هغه کال په شروع
کښې او دَ هغې میاشتې په لسم تاریخ چه دَ ښهر دَ ورهلو
څوارلسم کال وه هغه ورځ دَ خداوند لاس په ما باندې وه او
۲ ده زه هلته بوتلم ۲ هغه زه دَ خداي په دیدارونو کښې دَ
اسرائیل دَ مُلک په منځ کښې وروستم او هغه زه په یوه ډېر
لوي غره باندې کښېنولم او په هغه باندې دَ هغه دَ شمال په
۳ لورې دَ یوه ښهر غوندې بنا وه ۳ او ده زه هلته ورووستم
نو څه گورم چه یو سړی وه چه دَ هغه رنګ دَ زېړو په شان
رنګ وه او دَ هغه په لاس کښې دَ سنړو یو مزي او دَ
۴ پېچکولو یوه دُرمه وَه او په دروازي ولاړ وَه ۴ او هغه سړي
راته وویل چه اي آدم‌زاده پخپلو سترګو سره وګوره او په
خپلو غوږونو واوره او هغه چه زه يې درښکاره کړم په هغوي
ټولو باندې په خپل زړه کښې ودروه ځکه چه ته دي دَپاره
دلته را ورسولې شوې تا چه زه هغه هرڅه در ښکاره کړم
نو ته هغه ټول څه چه وینې دَ اسرائیل وکورته يې وښیه
۵ ۵ او څه ګورم چه له کور نه دَباندې پلو یو دیوال دی
او دَ هغه سړي په لاس کښې دَ پېچکولو دَپاره یوه دُرمه ده شپږ
هاتې اوږده او دَ هغو نه یوه یوه هاته څلور ځاپه زیاته وه
نو هغه دَ هغه عمارت څور پېچ کړ هغه یوه درمه شه او
۶ اوچتوالی يې یوه درمه ۶ پس هغه په هغې دروازي چه دَ

مشرق په لورِي ئې مخ وه راغي او دَ هغي په زينه وختوت او دَ
هغي دروازي آستانه ئې پچ کړه چه يوه دُرمه ئې څوروُه او دَ
دويمي آستانِي څور هم يو دُرمه وه ۷ او دَ کوټکئِ يوه درمه ۷
اوږدوالي او يوه دُرمه پلنوالَی وه او دَ کوټکيو منځ پنځه هاتي وُ
او دَ دروازي دمدمي څخه دَ بيت په لورِي دَ دروازي آستانه
يوه درمه وه ۸ او هغه دَ دروازي دَمدمه دَ بيت په خوا يوه درمه ۸
ئې پچ کړه ۹ پس هغه دَ دروازي دهليز آته هاتي ئې پچ کړ او ۹
دَ هغي ستني دوه هاتي او دَ دروازي دهليز دَکور په لورِي وُه
۱۰ او دَ مشرق په لورِي دروازي دَ کوټکئِ دري دي پلو دري هغه ۱۰
پلوته وي دا دري په يوپچ وي او دَدي او دَ هغي لورِي دَ ستني
يوه اندازه وه ۱۱ او هغه دَ دروازي دَ ننتني لس هاتي او ۱۱
اوږدوالي دَ دروازي ديارلس هاتي ئې پچ کړ ۱۲ او دَ کوټکيو دَ ۱۲
وړاندِ حد يوه هاته دي خوا او يوه هاته هغي خواته وه او دَ
کوټکئِ شپږ هاتي دي لورِي او شپږ هاتي هغي لورِي ته وي
۱۳ بيا هغه دروازه دَ کوټکئِ له چت نه دَ دويمي ترچت پوري ۱۳
پنځه ويشت هاتي پلنوالي ئې پچ کړ دَ دروازي په مخامخ دروازه
۱۴ بيا هغه شپيته هاتي ستني جوړي کړي او دَ غولي ستني څخه ۱۴
گرداگرد دروازي وي ۱۵ او دَ ننوتلو دَ دروازي په مخامخ دننه دَ ۱۵
دروازي تر دهليزه پوري پنځوس هاتي وي

۱۶ او دَ کوټکيو او دَ هغو په ستنيو کښ چه دَ دروازي دَننه ۱۶
چاپيره وي دريچي وي هم هسي دَ دالان دننه گرداگردي دريچي
وي: او په هري يوي ستني بانډِ دَ کجورو وني وي ۱۷ بيا ئې زه دَ ۱۷
باهر وغولي ته ورروستم او څه گورم چه حجري دِي او دَ غولي په
څلورو طرفونو فرش جوړ دَي او په هغه فرش بانډِ ديرش حجري
وي ۱۸ او هغه فرش چه دروازو څخه وه دَ هغو دروازو دَ اوږدوالي ۱۸

۱۹ په برابر لاندني فرش وه ۲۰ بيا هغه دَ هغي پلنوالي دَ لاندِ دَ
دروازي په مخ کښ دننه دَ غولي دَ مشرق په لوري او دَ قطب
۲۰ په لورِي باهر ئي سل هاتي کچ کړ ۲۰ بيا هغه دَ باهر غولي
دروازه چه مخ ئي دَ قطب په لوري وه دَ هغي اوږدوالي او پلنوالي
۲۱ ئي کچ کړ ۲۱ او دَ هغي کوټکۍ دري په دي پلو دري په هغه
پلو وي او دَ هغي ستني او دَ هغي دالان دَ ورنبي دروازي په
پيچ وه دَ هغه اوږدوالي پنځوس هاتي او پلنوالي ئي پنځه ويشت
۲۲ هاتي وه ۲۲ او دَ هغي دريچي او دَ هغه دالان او دَ هغه کجوري
وني دَ هغه دروازي په اندازي سره وي چه مخ ئي دَ مشرق
په لوري وه او تر پاسَ پوري ئي دَ اووه زينو ختنه وه دَ هغه
۲۳ دالانونه دَ هغوي دَ وړاندِ وُو ۲۳ او دننه دَ غولي دروازه دَ
قطب او دَ مشرق دَ دروازي دَ وړاندِ وَه او له دروازي نه
۲۴ تر دروازي پوري سل هاتي ئي کچ کړلي ۲۴ او بيا هغه زه دَ
جنوب په لورِي بوتلم او ئخه گورم چه دَ جنوب په لورِي يوه
دروازه ده او هغه دَ هغي ستني او دَ هغي دالانونه دَ هغو
۲۵ اندازو په موافق کچ کړل ۲۵ او په هغي کښ دريچي او دَ هغي
په دالانونو کښ گرداگرد دَ هغو دريچو په شان دريچي وي
۲٦ اوږدوالي ئي پنځوس هاتي او پلنوالي ئي پنځه ويشت هاتي ۲٦ او
په هغي باندِ دَ تللو دَپاره اووه پايي وي او دَ هغي دالانونه
دَ هغو په ستنيو دَ کجورو وني وي يوه په دي لوري او يوه
۲۷ په هغي لورِي ۲۷ او دَ جنوب په طرف دننه دَ غولي دروازه
وه او هغه دَ جنوب په طرف له دروازي نه تر دروازي
پوري سل هاتي کچ کړلي
۲۸ ۲۸ او هغه زه دَ جنوب له دروازي نه دننه په غولي
کښ راوستلم او دَ هغو اندازو په موافق هغه دَ جنوب

دروازه کچ کړله ۲۹ او دَ هغې کوټکئِ او دَ هغې ستنې او دَ ۲۹
هغې دالانونه دَ هغو اندازو په موافق او په هغې کښ او
دَ هغې په دالانونو کښ چاپېره دریچې وې اوږدوالي ئې پنځوس
هاتې او پلنوالي ئې پنځه ویشت هاتې وه ۳۰ دَ هغې دالانونه ۳۰
چاپېره پنځه ویشت هاتې اوږده او پنځه هاتې پلن وُو ۳۱ دَ ۳۱
هغې دالانونه باهر دَ غولي په طرف وُو او دَ هغې په ستنې
بانِدِ دَ کجورو ونې وې او په هغې دَ ختلو دَپاره اته پایې وې
۳۲ او هغه زه دَ مشرق په لوري دننه وغولي ته راوستلم ۳۲
او دَ هغو اندازو په موافق ئې دروازه کچ کړله ۳۳ او دَ هغې ۳۳
کوټکئ او دَ هغې ستنې او دَ هغې دالانونه دَ هغو اندازو په
موافق وُو او په هغې کښ او دَ هغې په دالانونو کښ ګرداګرد
دریچې وې دَ هغو اوږدوالي پنځوس هاتې وه او پلنوالي پنځه ویشت
هاتې وې ۳۴ او دَ هغه دالانونه باهر دَ غولي په لوري وُو ۳۴
او دَ هغه په ستنو بانِدِ دې خوا هغې خوا ته دَ کجورو
ونې وې او په هغه بانِدِ دَ ختلو دَپاره اته پایې وې ۳۵ او ۳۵
هغه زه دَ قطب دَ دروازې په لوري بوتلم او دَ هغو اندازو
په قدر ئې هغه کچ کړله ۳۶ دَ هغې کوټکئ او دَ هغې ستنې او دَ ۳۶
هغې دالانونه او دَ هغې دریچې چه ګرداګرد په کښ وې اوږدوالي
ئې پنځوس هاتې او پلنوالي پنځه ویشت هاتې وې ۳۷ او دَ هغې ۳۷
ستنې دَ باهر دَ غولي په لوري وې او دَ هغې په ستنې دې
خوا هغې خوا ته دَ کجورو ونې وې او په هغې بانِدِ دَ ختلو
دَپاره اته پایې وې
۳۸ او یوه حجره له دروازې سره دَ دروازو ستنو څخه ۳۸
وه هلته ئې دَ سېځلو قربانئِ وینځلې ۳۹ او دَ دروازې په دهلیز ۳۹
کښ دوه خوانچې په دې خوا: او دوه خوانچې په هغې خوا وې: چه

په هغوي ئې سیځونکي قرباني او دَ خطا قرباني او دَ تقصیر قرباني
٣٩ ذبحه کړي ٣٩ او په هغه لوري دَ باهر دَ قطب دَ دروازي
ختنې ته دوه خوانچې وې او دَ دروازي دَ دهلیز په بل لوري
٤١ دوه خوانچې ٤١ دَ دروازي په شا او خوا څلور خوانچې په دې لوري
څلور خوانچې په هغه لوري وې اته خوانچې چه په هغوي باندِ
٤٢ دوي ذبحه کولې ٤٢ دَ سیځونکي قربانۍ دَپاره دَ تراشلیو کاڼیو
څلور خوانچې وې چه یوه نیمه هاته ئې اوږدوالي او یوه نیمه هاته
ئې پلن‌والي او یوه هاته ئې اوچت‌والي وه چه په هغوي دَ سیځونکو
٤٣ قربانیو او دَ ذبحو دَ ذبحه کولو وسلې کېښودلې ٤٣ او دَ هغه
دننه په څلورو خواؤ څلور گوټې پلن دوه غاښونه وُو او دَ
٤٤ قربانیو غوښې په خوانچو باندِ ېښې وې ٤٤ او دننه دَ دروازي دَ
باندِ په اندرونې غولي کښ چه دَ قطب دَ دروازي په طرف وُه
دَ غزلیانو حجرې وې او دَ هغو مخونه دَ جنوب په لوري وُه او یوه
دَ مشرقي دروازي په طرف وه چه مخ ئې دَ قطب په لوري وُه
٤٥ ٤٥ او هغه راته ووئیل چه دا حجره چه مخ ئې دَ جنوب په لوري
٤٦ دَي دَ هغو کاهنانو دَپاره دَه چه دَ بیت نګهباني کوي ٤٦ او
هغه حجره چه مخ ئې دَ قطب په لوري دَي دَ هغو کاهنانو
دَپاره دَه چه دَ مذبح په ساتنه کښ نګهباني کوي دغه بني‌صدوق
دي چه له بني‌لاوي نه خداوند ته راځي تا چه خدمت ئې
٤٧ وکړي ٤٧ او هغه غولې سل هاتې اوږد او سل هاتې پلن څلور
کُنجه کړ او مذبح دَ بیت دَ وړاندِ وه
٤٨ ٤٨ بیا ئې زه دَ کور ودهلیز ته راوستم او دَ دهلیز
هره ستنه ئې کچ کړله پنځه هاتې دې خوا ته او پنځه هاتې
هغې خوا ته او دَ دروازي پلن‌والي درې هاتې دې لوري ته وُه
٤٩ او درې هاتې هغه پلو ته ٤٩ دَ دالان اوږدوالي شل هاتې او

پلن والي ئې يولس هاتې وه او هغه په هغو پوړيو چه په هغوي
به دوې و هغه ته ختل او ستنبوڅخه ارکان وُو يو په دي
پلو يو په هغه پلو ✣

# يو څلوېښتم باب

آ او هغه زه و هيکل ته راوستم او ستني ئې کچ کړلې پلن والي ١
په دې لورې شپږ هاتې او پلن والي په هغه لورې شپږ هاتې
دا دَ مسکن پلن والي وه ٢ او دَ مدخل پلنوالي لس هاتې او دَ ٢
مدخل اطرافونه پنځه هاتې په دې لورې او پنځه هاتې په هغه
لورې وُو او هغه دَدغه اوږدوالي څلوېښت هاتې کچ کړ او پلنوالي
ئې شل هاتې ٣ بيا هغه دننه لاړ شه او دَ مدخل ستني ئې ٣
دوه هاتې وکچلې او مدخل شپږ هاتې او دَ مدخل پلنوالي
اووه هاتې وه ٤ او هغه دَ هيکل دَ وړاندِ اوږدوالي شل هاتې ٤
او پلنوالي ئې شل هاتې کچ کړ او ما ته ئې وويل چه دغه
قدس الاقدس دې ٥ او هغه دَکور ديوال شپږ هاتې کچ کړ ٥
او دَ بغلونو دَ کوټکيو پلن والي دَکور په ګرداګرد څلور هاتې وه
٦ او دَ بغل کوټکئِ په دريو کوټکيو دَ پاسَ کوټه په قطار کښ ٦
دېرش او هغوي په هغه ديوال کښ چه دَکور په شا اوخوا
دَ بغل دَ کوټکيو دَپاره داخلې کړې شوې وې تا چه هغوي
مضبوطې وِې مګر دَ کور له ديوال سره پيوسته نه وې ٧ او ٧
چاپېره دَ کوټکيو فراخي پورته په پورته زياتېدله څکه چه دَ
کوره چاپېره دَ کور په ګرداګرد پورته په پورته وه له دې سببَ
دَکور پلنوالي تر پاس پورې زيات وه او له کوزنه تر پاسَ
پورې په سينځ کښ وخوت ٨ او ما دَ کور دَ څلورو طرفونو ٨
اوچت والي هم وليد دَ څنګ دَ کوټکيو بنيادونه شپږ پوره پوره
هاتې په درمې سره ٩ او دَ څنګ دَ کوټکيو دَ باهر دَ ديوال سور ٩

پنځه هاتې او هغه چه خالي پاتې شه نو دَ کور دَ کوټکیو ځای
۱۰ وه ۱۰ او دَ حجرو په منځ کښ دَ کور په څلورو طرفونو گرداگرد
۱۱ شل هاتې پلن‌والي ئې وُه ۱۱ او دَ څنګ دَ کوټکیو دروازې دَ
هغه خالي ځاې په پلو وي یوه دروازه دَ قطب په لورِي: او
بله دروازه دَ سهیل په لورِي او دَ خالي ځاې پلنوالَي په څلورو
۱۲ طرفونو پنځه هاتې وه ۱۲ او هغه عمارت چه دَ کوښې ځاې دَ
وړاندِ دَ هغه دَ مغرب په لورِي وه نو دَ هغه پلنوالي اویا
هاتې وه او دَ هغه عمارت دیوال په څلورو طرفونو پنځه
۱۳ هاتې پېړه او دَ هغه اوږدوالي نوي هاتې وه ۱۳ نو دَ هغه
کور اوږدوالي ئې سل هاتې کچ کړ او کوښې ځاې او عمارت
۱۴ دَ هغه له دیوالونو سره سل هاتې اوږد وه ۱۴ او دَ کور مخه
او دَ هغه کوښې ځاې مخه چه دَ مشرق په لورِي وه نو دَ هغه
پلنوالي سل هاتې وه
۱۵ ۱۵ او دَ کوښې مخې دَ عمارت پلنوالي چه ورستو وُه او دَ
هغه لورِي دَ منډو له دې لورِي او له هغه لورِي دننه
هیکل او دَ باهر غولي له دالانونو سره ئې سل هاتې کچ کړه
۱٦ ۱٦ او دَ آستانې او کُنګرې دارې او دَ گرداگرد منډو چه دَ درېو
بالاخانو چه دَ آستانې په مقابل وي دَ لرګیو له تختو له څلورو
طرفونو او له زمکي نه تر درېچې پورې او دَرېچې هم پټې شوې
۱۷ وې ۱۷ او دروازې تر پاسَ پورې او دننه تر کوره پورې او
دَ هغه دَ باندِ هم دَ څلورو طرفونو تر ټولو دیوالونو پورې دَ
۱۸ کور باهر دننه په دې اندازې سره وه ۱۸ او کروبیان او دَ
کجورو وُنې په کښ جوړې شوې وې داسې چه دَ یوې کجورې
۱۹ ونه به دَ دوو کروبیانو په منځ کښ وه ۱۹ او دَ هر یوه کروبي
دوه مخونه وُو لکه چه په یوه لورِي دَ کجورې په لورِي دَ انسان

مخ وَه او پهٔ بل لورِي دَ ګجوري په طرف دَ ځوان ببرِ زمرِي مخ دَ
٢٠ کور په څلورو طرفونو هم داسې کار وه ٢٠ له زمکې نه تر پاس
دروازې پورې او دَ هيکل په ديوالونو باندِ کروبيان او دَ
٢١ ګجورو ونې جوړې شوې وې ٢١ او دَ هيکل دَپاره څلور ګُنجه ستنې
جوړې شوې وې او مخ .دَ مقدّس او شکل ئې لکه شکل او
٢٢ مخ دَ هيکل وُه ٢٢ دَ لرګيو مذبح درې هاتې اوچته وه او
اوږدوالي دوه هاتې وه او دَ هغه ګنټونه او دَ هغه اوږدوالي
او دَ هغه ديوالونه دَ لرګيو وُو او ما ته ئې ووېل چه دا هغه
٢٣ ميز دَی چه دَ خداوند دَ وړاندِ دَی ٢٣ او دَ هيکل او دَ مقدس
٢٤ دَپاره دوه دروازې وې ٢٤ او دَ دروازو دوه پلې وې چه ګرزېدلې
٢٥ به دوه دَ يوې دروازې دَپاره او دوه پلې دَبلې دَپاره ٢٥ او په
هغو باندِ يعنې .دَ هيکل په دروازو باندِ کروبيان او دَ ګجورو
ونې جوړې شوې وې لکه چه په ديوالونو جوړې شوې وې او دَ
باهر دَ دهليز په مخ تخته بند وه ٢٦ او دَ دهليز په څنګونو
او دَ کور دَ څنګ په کوټکيو کښې کنګرې دارې درېچې او دَ
ګجورو ونې دې طرف او هغې طرف ته وې کوټکۍ او تخت بندونه وُو

# دو څلوېښتم باب

١ آبيا هغه زه دَ باهر وغولې ته دَ قطب دَ لورِي له لارې ورووستم
او په هغو کوټکيو کښې چه دَ کوښې ځاي په مخ کښې او دَ عمارت
٢ دَ وړاندِ دَ قطب په لورِي وې راوستم ٢ او دَ مخ اوږدوالي سل
هاتې او دروازه ئې دَ قطب دَ لورِي وَه او دَ هغې پلنوالي پنځوس
٣ هاتې وه ٣ دَ شلو هاتو په مخ کښې چه دننه په غولې کښې وې
او دَ باندِ دَ غولې دَ فرش په مخ کښې دَ جانب کوټکۍ دالان په
٤ دالان په درې درجې يوه دَ بلې په برابرئ وه ٤ او دَ کوټکيو دَ

ورانډِ دننه يوه لار وه لس هاتي پلنه دَ يوي هاتي لار وه
۵ او دَ هغو دروازي دَ قطب په لورِي وي ۵ او پورته کوټکيِ ورو کي
وي ځکه چه دَ هغو دالانونه زيات دَ لانډِوالو او دَ منځ والو له
۶ عمارتَ پريکوونکي وُو ۶ ځکه چه هغوي دري درجي وُو ليکن دَ
غوليو دَ ستنيو په دود دَ هغو ستني نه وي دي دَپاره چه
هغه له زمکي نه له لانډِوالو او دَ منځ له والو نه زياتي تنګي
۷ وي ۷ او هغه ديوال چه دَ باهر کوټکيو له ځنګه وه او دَ
باهر غولِي په طرف دَ کوټکيو دَ ورانډِ وه پنځوس هاتي اوږد
۸ وه ۸ ځکه چه دَ باهر دَ غولِي دَ کوټکيو اوږدوالي پنځوس هاتي
۹ وُه او کورئِ چه دَ هيکل دَ ورانډِ سل هاتي وي ۹ او تر دغو
کوټکيو لانډِ دَ مشرق په لورِي هغه مدخل وُه چه هلته
۱۰ په هغوي له باهر غولِي نه ورننوتل ۱۰ دَ ديوال په پلنوالي کښ
دَ مشرق په لورِي کوټکيُ وي او دَ عمارت دَ ورانډِ جدا ځاي
۱۱ وه ۱۱ او دَ هغو دَ ورانډِ دَ لاري شکل لکه چه دَ قطب دَ
لورِي دَ حجرو لکه چه دَ هغو اوږدوالي هسي دَ هغو پلنوالي
وه او لکه دَ هغوي وتنه او لکه دَ هغوي ترتيبونه او لکه دَ هغو
۱۲ دروازي وي ۱۲ او لکه دروازي دَ هغو حجرو چه دَ سُهيل په لورِي
وي يوه دروازه دَ لاري په سر کښ وَه او دَ ديوال لار ئي دَ
۱۳ مشرِق په لورِي برابره چرته چه څوک ورننه وزي ۱۳ او هغه
راته وُوِ چه دَ قطب حجري او دَ سُهيل حجرِي چه دَ کوبني ځاي
په مخامخ دِي مقدّسي حجري دِي چه هلته کښ به کوهينان
چه خداوند ته نژدي کيږِي اقدس خيزونه وخورِي دوي به هلته
کښ اقدس خيزونه يعني دَ نذر قربانئِ او دَ خطا قربانئِ او دَ
۱۴ تقصير قربانئِ بږدي ځکه چه هغه مکان مقدّس دي ۱۴ هر کله
چه کوهينان داخل شي نو هغوي دِ له مقدّس نه په باهر غولِي

کښې نه ښي بلکه دَ خپل خدمت جامې دِ هلته کښېږدي ځکه
چه دغه مقدّسې دي او هغوي دِ نورې جامې واغوندي او ور دِ
شي هغه ته چه دَ قوم دي
١٥ ١٥ پس هرکله چه هغه دننه مکان دَ کچ کولو ختم کړ نو
زه ئې دَ هغې دروازې له لارې راوستم چه مخ ئې دَ مشرق
١٦ په لورې دې او هغه ئې له څلورو طرفونو کچ کړ ١٦ هغه دَ
١٧ کچ کولو په درمې دَ مشرق طرف پنځه سوه درمې چاپېره کچ کړ ١٧ نو
هغه دَ کچ کولو په درمې دَ قطب په طرف پنځه سوه درمې
١٨ چاپېره کچ کړ ١٨ هغه دَ کچ کولو په درمې دَ سُهيل طرف هم
١٩ پنځه سوه درمې کچ کړ ١٩ هغه دَ مغرب په لورې وګرزېده دَ کچ کولو
٢٠ په درمې ئې پنځه سوه درمې کچ کړ ٢٠ له څلورو طرفونو ئې کچ کړ
نو ديوال پنځه سوه درمې اوږد او پنځه سوه پلن وه تا چه
پاک مکان له عام نه جدا ئې وکړي ÷

## دري څلويښتم باب

١ ١ پس له هغه نه ئې زه و دروازې ته راوستم هغې دروازې
٢ ته چه مخ ئې دَ مشرق په لورې دي ٢ او ګوره چه دَ اسرائيل
دَ الله جلال دَ مشرق له لارې راغې او دَ هغه آواز دَ ډېرو
اوبو دَ آواز غوندې وه او زمکه دَ ده له جلال نه روښانه
٣ شوه ٣ او ديدار لکه دَ هغې ديدار دَ ښکاره کېدو په موافق
چه ما وليده هو هغه ديدار چه ما وليده هرکله چه زه
ښهر ته دَ بربادولو دَپاره راغلې وم او دَ هغه ديدارونه
دَ هغې ديدار په موافق وُو چه ما دَ کبار دَ درياب په غاړې
٤ وليد او زه پرمخ پرېوتم ٤ او دَ خداوند جلال دَ هغې دروازې
له لارې نه چه مخ ئې دَ مشرق په لورې دې په کور کښې راننوت

۵ ۵ او زه روح واخستم او اندروني غولي ته يې راوستلم اوګوره
۶ چه دَ خداوند جلال کور ډک کړه ۶ او ما واوريدل چه له کور
۷ نه يو له ما سره خبري کولي او يو سړيَ راته ولاړ دَي ۷ او هغه
راته و ويل چه اي آدم‌زاده دا ځما تخت‌ګاه او ځما دَ پښو کرسيَ
چه هلته کښې به دَ بني‌اسرائيل په منځ کښې تر ابده اوسم
او دَ اسرائيل کور دوي او دَدوي بادشاه به آينده ما او ځما
پاک نوم په خپلي زناکاريَ سره او دَ خپلو بادشاهانو په لاشونو
۸ سره چه په اوچتو مکانونو کښې دِي ناپاک نه کړي ۸ چه دوي
به خپلي آستاني ځما دَ آستانو سره او خپلي ستيني ځما دَ
ستنو سره لګولي داسي چه ځما او دَدوي په منځ کښې تش يو
ديوال وه او دوي په هغو خپلو نجسو کارونو چه دوي وکړل
ځما پاک نوم به يې ناپاک کاوه دي دَپاره ما په خپل قهر کښې
۹ هلاک کړل ۹ پس اوس دِ دوي خپلي زناکاريَ او دَ خپلو بادشاهانو
لاشونه له ما نه لرِي کړي پس زه به دَدوي په منځ کښې تر ابدَ
۱۰ پوري اوسم ۱۰ اي آدم‌زاده دَ اسرائيل کور ته دا کور ښکاره کړه
تاچه دوي دَ خپلو ګناهونو په سبب شرمنده شِي او دوي
۱۱ دغه نمونه ګچ کړي ۱۱ او که دوي له خپلو ټولو کارونو نه پښيمانه
شِي نو دَ هغه کور نقشه او دَ هغه ترتيب او دَ هغه دَوتني
او دَ ننوتني ځاي او دَ هغه ټولي نقشي او دَ هغه ټول قانونونه
او دَ هغه دستورونه او ټول حکمونه هغوي ته ښکاره کړه او دَ
هغوي دَ نظر دَ وړاندِ يې وليکه تاچه هغوي دَ هغه ټولي نقشي
۱۲ او دَ هغه ټول قانون وساتي او عمل پري وکړي ۱۲ دغه دَ دغه
کور توريت دَيَ دَ هغه ټول سرحدونه دَ غره په څوکي باندي
او دَ هغه په ګردا ګرد به نهايت مقدّس وِي ګوره دا دَدي کور
توريت دَيَ

۱۳ ۱۳ او دَ کچ کولو په هاتِي دَ قربانګاه دغه اندازي دِي او
دغه هاته چه ده نو يوه هاته او څلور ګوتِي دَه دَ هغه تلَي يوه
هاته او يوه هاته پلن او په ګِرداګِرد دَ هغه دَ لمنِ کناره يوه
۱۴ لويشت او دا دَ مذبح بيخ دَي ۱۴ او دَ زمکي له تِلي نه دَ لاندِ
تر کرسئِ پوري دوه هاته او دَ هغه پلنوالي يوه هاته او له
وړوکي کرسئِ نه تر لوي کرسئِ پوري څلور هاتي او پلنوالي ئِي
۱۵ يوه هاته ۱۵ او قربانګاه به څلور هاتي وِي او دَ قربانګاه له شبکي
۱۶ دَپاسَ به څلور ښکره وِي ۱۶ او دَ قربانګاه شبکه به دولس هاتي
۱۷ اوږده او دولس به چارچاپيره پلنه وِي ۱۷ او دَ هغي نغري څوارلس
هاتِي به پلن او څوارلس هاتِي به اوږد چارچاپيره وِي او کناره ئِي
نيمه هاته او تلَي ئِي چاپيره يوه هاته او پايِي دَ هغه به دَ مشرق
په لورِي وِي

۱۸ ۱۸ او هغه راته ووېل چه اي آدم‌زاده خداوند يهوه
داسي فرمايِي چه دغه دَ قربانګاه قانونونه دِي په هغي ورځي کښ
چه دوي ئِي جوړه کړِي تا چه په هغي سيځونکي قربانئ وخيژوِي
۱۹ او په هغي باندِ وينِي څنړکاؤ کړِي ۱۹ او ته کوهينانو بنِي لاويانو
ته چه دَ صدوق له نسلَ دِي چه څما دَ خدمت دَپاره ما ته
نژدي راځِي دَ خطا دَ قربانئِ دَپاره يو سخي ورکړه خداوند
۲۰ يهوه وايِي ۲۰ او ته دَ هغه له وينو واخله او دَ مذبح په
څلورو ښکرونو او دَ هغه دَ کرسئِ په څلورو کونجو او دَ هغه
په چاپيره کنارو ئِي کېږده په دي شان سره ئِي پاکه او کفاره
۲۱ ئِي کړه ۲۱ او دَ خطا دَ قربانئِ دَپاره هغه سخيَ واخله او دَ کور
۲۲ په مقرر ځاي کښ به له مقدِس نه باهر وسيځلي شي ۲۲ او
ته بله ورځ يو وڅ بي‌عيب دَ خطا دَ قربانئِ دَپاره وخيژوه
او هغوي به مذبح په داسي شان سره پاک کړِي لکه چه هغوي

۲۳ په هغه سخي سره پاکه کړي وه ۲۳ او هرکله چه تا هغه پاک
۲۴ کړه نو يو بيعيب من پړ وخيژوه ۲۴ او ته هغوي دَ خداوند
دَ وړاندِ پيش کړه او کاهن دِ په هغو دواړو مالگه وشندِي
او هغوي دِ ئي دَ سيځونکي قربانئِ دَپاره دَ خداوند دَ وړاندِ
۲۵ وخيژوي ۲۵ او ته هره ورځ تر اووه ورځو پوري يوه بزه دَ
خطا دَ قربانئِ دَپاره طياره کړه هغوي دِ يو سخيَ او دَ رمي
۲۶ يو من هم چه بيعيب وِي تيار کړِي ۲۶ اووه ورځي دِ هغوي
۲۷ قربانگاه کفاره او پاکه کړِي او دَده لاس به ډک کړِي ۲۷ او
هرکله چه دا ورځي پوره شِي نو داسي به وشِي چه په اتمه
ورځ او په وړاندي له هغه نه به هم کوهينان ستاسي
سيځونکي قربانئِ او ستاسي دَ سلامتئِ قربانئِ په مذبح باندِ
جوړي کړِي او زه به له تاسي راضِي شم خداوند يهوه وايي ❊

# څلور څلويښتم باب

۱ آ پس هغه زه دَ مقدّس دَ باهر دروازي په لاري چه مخ
ئي دَ مشرق په لورِي دَي را وگرزولم او هغه بنده وه -
۲ ۲ خداوند راته وويل چه دغه دروازه به بنده وِي وازه
به نه شِي او هيڅ انسان به په هغي ورننه نه وزِي ځکه
چه خداوند دَ اسرائيل الله په هغي ورننوتلي دَيَ دي دپاره
۳ به هغه بنده وِي ۳ مگر هغه شاهزاده دي دَپاره چه
شاهزاده دَيَ دَ خداوند دَ وړاندِ به دَدوي دَ خوړلو دَپاره
په هغي کښ کښيني دَي به دَ هغي دروازي دَ دهليز له
لاري نه ورننه وزِي او په هغي لاري به دَ باندِ ووزِي -
۴ ۴ بيا هغه زه دَ کور دَ قطب په لاري دَ کور دَ وړاندِ راوستم
او ما وکتل او کوره چه دَ خداوند جلال دَ خداوند کور

٥ ډک کړ او زه پرمخ پريوتم ۵ او خداوند راته ووېل چه اې
آدمزاده ته زړه ولګوه او په خپلو سترګو وګوره او هغه څه
چه دَ خداوند دَ کور دَ حکمونو او دَ تورٰيت په باب کښ
تاته وايم په خپلو غوږونو ئې واوره او دَ کور په مدخل او
٦ دَ مقدِس په ټولو مخرجونو زړه کېږده ٦ او ته دَ اسرائيل دَ کور
وياغيانو ته ووايه چه خداوند يهوه داسې وايي چه اې اهلِ اسرائيل
٧ تاسې ته دا ټول نجس کارونه ستاسې بس دِي ٧ چه تاسې دَ
بيګانهٔ ځاسن دَ زړه نامختون او دَ غوښې نامختون ځما په مقدِس
کښ ننه يستل او هغوي ځما کور نجس کړ هرکله چه تاسو ځما
ډوډئِ او وازدې او وينې پيشوئِ او هغوي ستاسې دَ ټولو
٨ نفرتي کارونو دپاسه ځما وعده ماته کړه ٨ او تاسې ځما دَ پاکو
څيزونو ساتنه ونه کړه بلکه تاسې ناظران دَ خپلو ځانونو دَپاره
٩ ځما په مقدِس کښ مقرّر کړل ٩ خداوند يهوه داسې وايي چه
له هغو بيګانه زادګانو چه دَ بني‌اسرائيل په منځ کښ دِي هيځ
دَ زړه نامختون او دَ جسم نامختون بيګانه زاده به ځما په مقدِس
١٠ کښ داخل نه شِي ١٠ بلکه ليويان هم چه له ما نه لرې شول هغه
وقت چه اسرائيل ګمراه شه چه دوي دَ خپلو بُتانو په پيروئ
کولو له ما نه ګمراه شول نو دوي به هم خپلې بدئِ پورته کړي
١١ ١١ نو هم ځما په مقدس به خادمان وِي او دَ کور دَ دروازو
ناظرِي به کوِي او دَ کور خدمتګذارِي به کوِي دوي به دَ خلقو
دَپاره سېځونکې قرباني او ذبحې ذبحه کوِي او دَ دوي دَ وړاندِ
١٢ به دَ هغو دَ خدمت دَپاره ولاړ وِي ١٢ هرکله چه هغوي دَ
هغوي دَپاره دَ بُتانو دَ وړاندِ خدمت کړې وه او هغوي دَ
اسرائيل دَ کور دَپاره ټوپې ورکوونکې دَ بدئِ شول دې دَپاره
ما په دوي باندِ خپل لاس پورته کړ او دوي به خپلې بدئِ پورته

۱۳ کړي خداوند يهوه وايي ۱۳ او دوي به ما ته نژدې رانه شي چه
خما کاهني وکړي يا په قدّوس الاقدس کښ خما مقدّسو څيزونو
نخه راشي بلکه دوي به خپله رسوائي پورته کړي او خپل پليت
۱۴ کارونه چه دوي کړي دي ۱۴ نو هم زه به دوي دَ کور دَ ساتني
دَپاره او دَ هغه دَ خدمت دَپاره او دَ هغه دَ ټولو کارونو دَ کولو
دَپاره نگهبان مقرّر کړم
۱۵ ۱۵ ليکن کوهينان لاويان دَ صدوق ځامن چه خما دَ مقدس
ساتنه ئي کوله هغه وقت چه بني اسرائيل رانه گمراه شول نو
دوي به خما دَ خدمت دَپاره خما په نزد راشي او خما په حضور
به ودريږي چه خما دَ وړاندې وازدي او وينې وگذاري خداوند
۱۶ يهوه وايي ۱۶ او دوي به خما په مقدس کښ داخل شي او
خما دَ خدمت دَپاره به خما ميز نخه راشي او خما دَ څيزونو ساتنه
۱۷ به کوي ۱۷ او داسي به وشي چه هغه وقت چه دوي دَ اندروني
غولي له دروازونه داخل کيږي نو دوي به کتاني پوشاک آغوستي
راځي او نو هغه پوري چه دننه دَ غولي دَ دروازو په نخ کښ
۱۸ او هم دننه خدمت کوي نو شړيئ به پر باندِ نه وي ۱۸ او دوي
به پخپلو سرونو کتاني ټوپئ او په ملاو کتاني پرتکونه آغوستي
وي او هغه څه چه دَ خولي سبب وي پخپلي ملا دِ نه تړي
۱۹ ۱۹ او هرکله چه دوي په باهر غولي کښ يعني دَ عوامو په باهر
غولي کښ ووزي نو دَ خپل خدمت پوشاک به وباسي او دَ
مقدس په حجرو کښ به ئي کيږدي او بل پوشاک به واغوندي
۲۰ تا چه دوي هغه جامي آغوستي دَ عوامو پاکي و نه کړي ۲۰ او
دوي به خپل سرونه نه خريي او نه به ويښته اوږده پريږدي
۲۱ دوي به صرف دَ خپلو سرونو ويښته واخلي ۲۱ او هرکله
چه دننه په غولي کښ داخل وي نو هيځ کوهين دِ شراب

نه ښځې ۲۲ او هغوي دِ کُنډه یا مطلقه ښځه نه کوِي بلکه دَ ۲۲
اسرائیل دَ تخم له نسلَ دِ پیغله واخلِي یا هغه کُنډه چه
کوهن کُنډه پرېښې وِي ۲۳ او دوي به ځما خلقو ته دَ پاک او ۲۳
دَ ناپاک فرق ور وښیي او ورزده به ئې کړي تاچه هغوي په
نجس او په پاک تمیز کوِي ۲۴ او دوي به په معامله کښ دَ ۲۴
عدالت دَپاره ولاړ وِي دوي به ځما دَ حکمونو په موافق عدالت
کوِي او دوي به ځما په ټولو مقررو عیدونو کښ ځما شریعتونه
او ځما حکمونه ساتِي او ځما سبتونه به مقدّس کړِي ۲۵ او ۲۵
دوي به دَ ځان دَ ناپاکولو دَپاره هیڅ مړي تخه نه ځِي مګر
صرف دَ پلار یا دَ مور یا دَ ځوي یا دَ لُور یا دَ ورور یا دَ
پیغلې خور دَپاره دوي خپل ځان ناپاک کولي شِي ۲۶ او دوي ۲۶
دِ پس له پاک کیدلو دَ هغه نوري اوه ورځې و شمارِي ۲۷ او ۲۷
هغه ورځ چه دوي دننه په مقدّس کښ دَ اندروني غولي
په منځ کښ ورځِي تاچه په مقدس کښ خدمتګذارِي وکړِي
نو هغه به دَ ځان دَپاره دَ خطا قربانِي وګذارِي خداوند یهوه
وائِي ۲۸ او دا به دَ دوي میراث وِي هم زه دَ دوي میراث یم ۲۸
او تاسي به په اسرائیل کښ هغوي ته ملکیت ور نه کړئِ هم
زه دَ دوي ملکیت یم ۲۹ او دوي به دَ هدیې قربانِي او دَ خطا ۲۹
قربانِي او دَ تقصیر قربانِي خوري او هر یو څیز چه په اسرائیل
حرم کړي شِي دَ هغوي به وِي ۳۰ او ټول ورنبي دَ ورنبیو وړنيَ ۳۰
او ستاسي دَ ټولو قربانیو دَ هر یوه څیز هره یوه قرباني
به دَ کوهینانو وِي او تاسي دَ خپلو اغزلیو اوړو ورنبي
و کوهین ته ورکړئِ تاچه برکت ستاسي په کور نازل شِي -
لیکن هغه چه پخپله و مرِي یا درندګانو څیري کړي وِي که پرنده ۳۱
که درنده وِي کوهین دِ ئې نه خوري ❊

# پنځه څلوېښتم باب

۱ آ او هرکله چه تاسي زمکه دَ ميراث دَپاره په هسک سره
به ووېشئِ نو تاسي به دَ زمکي يوه پاکه حصّه دَ خداوند دَ
وړاندِ هديه وګذارئِ دَ هغه اوږدوالي به دَ پنځه وېشت زرو
او پلنوالي به ئې لس زره وِي او دغه به دَ هغه دَ چارچاپېره
۲ ټولو حدونو سره مقدس وِي ۲ له هغي نه به پنځه سوه په
پنځه سوه چارچاپېره مربع دَ مقدس دَپاره وِي او دَ هغه دَ
ميدان دَپاره به په څلورو طرفونو پنځوس هاتي وِي -
۳ ۳ او ته به دَ هغه دَ پيمايش پنځه وېشت زره په اوږده او
لس زره په ساره کچ کړي او په هغه کښ به متقدّس
۴ قُدُسُ الاَقدَس وِي ۴ دا دَ زمکي پاکه حصّه به دَ هغو کهنانو
دَپاره وِي چه دَ مقدّس خادمان دِي او چه دَ خداوند وحضور
ته دَ خدمت دَپاره راځي او هغه ځاي به دَ هغوي دَ کورونو
دَپاره وِي او هغه به دَ مَقدِس دَپاره مقدّس ځاي وِي -
۵ ۵ او هغه چه اوږدوالي ئې پنځه وېشت زره او پلنوالي ئې لس
زره دَي دَ کور دَ خادم دَ بني لاوِي دَپاره به وِي تا چه دَ هغو
۶ دَپاره دَ شلو حجرو ځاي وِي ۶ او تاسي دَ ښهر حصّه پنځه
زره په ساره پنځه وېشت زره په اوږده دَ مقدس دَ هديې والو
حصّه برابره مقرّره کړئ نو هغه به دَ ټول دَ اسرائيل دَ کور
۷ دَپاره وِي ۷ او دَ مقدس دَ هديو والو حصّه چه دَ ښهر دَ
حصّي يو طرف او بل طرف دَ مقدس دَ هديې والو دَ حصّي
په مخ او دَ ښهر دَ حصّي په مقابل له مغرب نه تر مغربَ
او له مشرقَ تر مشرقَ به دَ شاهزاده دَپاره وِي او اوږدوالي
دَ هغي له مغربِي سرحد نه تر مشرقِي سرحده پوري له هغو

۸ حصو نه دَ يوي په برابر دِ وِيِ ۸ په اسرائيل کښِ به هغه لره
دَ ملکيت زمکه وِيِ او ځما شاهزادګان به بيا ځما په خلقو
ظلم و نه کړِيِ او هغوي به زمکه دَ بنِي اسرائيل دَ فرقو په
موافق ورکړِيِ
۹ ۹ خداوند يهوه داسي وايِي چه اي دَ اسرائيل شاهزادګانو
دومره ستاسي دَپاره بس دَيِ چه ظلم او لوټ لرِي کاندِيِ عدالت
او صداقت وکړِيِ او ځما له خلقو شړنه پورته کړِيِ خداوند
۱۰ يهوواه وايِي ۱۰ او تاسو رښتيني تله او رښتيني ايفه او رښتيني
۱۱ بث يښي لرئِ ۱۱ او ايفه او بث دِ په يوه وزن سره وِيِ چه
يو بث دَ خومر لسمه حصه وِيِ او ايفه به هم دَ خومر لسمه
۱۲ حصه وِيِ اندازه دِ دَ خومر په موافق وِيِ ۱۲ او مثقال دِ دَ
شلو جيرو وِيِ او شل مثقال پنځه ويشت مثقال دَ پنځلسو
۱۳ مثقالونو دِ ستاسي من وِيِ ۱۳ او هديه چه تاسي به يِي
ګذارِئِ نو دا دَه دَ غنمو دَ خومر دَ ايفي شپږمه حصه او دَ
۱۴ اوربشو دَ خومر دَ ايفي شپږمه حصّه به ګذارِئِ ۱۴ او دَ تيل
يعني دَ تيلو دَ بث مقرّره حصّه دا دَه چه ته له کاري چه
لس بثّ دَيِ دَ يوه بث لسمه حصّه ورکړِئِ ځکه چه په خومر
۱۵ کښِ لَس بثونه دِيِ ۱۵ او له رمي نه له دوه سوو دَ اسرائيل
دَ عمده څراګاهو يو وري دَ هديي دَ قربانِئِ دَپاره او دَ سيځونکي
قربانِئِ دَپاره او دَ سلامتيا دَ قربانِئِ دَپاره تاچه دَ هغو دَپاره
۱۶ کفاره وِيِ خداوند يهوه وايِي ۱۶ ټول خلق دَ ملک دَ هغه
شاهزاده دَپاره چه په اسرائيل کښِ دَيِ هم دا هديه به
۱۷ ورکوِي ۱۷ او په شاهزاده به سيځونکي قربانِئِ او دَ هديي قربانِئِ
او په عيدونو او په نوي مياشتو او په سبتونو او دَ اسرائيل
دَ کور په ټولو مقدّسو عيدونو کښِ وِيِ دَيِ به دَ خطا قربانِئِ

او سیځونکي قرباني او د سلامتي قرباني د اسرائیل د کور د
کفاري دپاره طیاري کړي

١٨ ١٨ خداوند یهوه داسي وایي چه د وړمبي میاشتي به
به وړمبي تاریخ یو بيعیب ځوان سخي و نیسي او مقدس
١٩ پاک کاندي ١٩ او کوهین به د خطا د قرباني وینې واخلي او
هغه به د کور په ستني باند او د مذبح د کرسي په څلورو
٢٠ کنجونو او د ننه د غولي په ستني باند به ئي ولګوي ٢٠ او ته
به د میاشتي اوم تاریخ د هر یوه دپاره چه خطا ئي کړي
او د هغه دپاره هم چه نادان دي هم داسي کوي هم هسي
٢١ به تاسي د کور کفاره ورکوي ٢١ تاسو به د وړمبي میاشتي په
څوارلسمي ورځي فصح لري چه اوه ورځي د عید دي او فطیري
٢٢ ډوډي به خوړلي شي ٢٢ او هغه ورځ به شاهزاده د ځان
دپاره او د ټولو خلقو د ځمکي دپاره د خطا د قرباني دپاره
٢٣ یو سخی طیار کړي ٢٣ او د عید په اووه ورځو به هغه هره ورځ تر
اووو ورځو پوري اوه بيعیب سخي او اوه مړوونه طیار کوي تا چه د
خداوند د وړاند سیځونکي قرباني وي او هره ورځ له بزو نه یو څیرلي تا
٢٤ چه د خطا قرباني شي ٢٤ او هغه به د هر یوه سخي دپاره یوه ایفه
د هدیي د قرباني دپاره او د هر یوه مړ دپاره یوه ایفه او د هري
٢٥ یوي ایفي دپاره یو هین تیل طیار کړي ٢٥ د اوومي میاشتي پنځلسم
تاریخ به هم هغه د عید دپاره لکه چه هغه به دي اووو ورځو کښ
کړي وو طیاري کوي د خطا د قرباني په موافق د سیځونکي قرباني
په موافق او د نذر د قرباني په شان او د تیلو په خیر *

## شپږ څلویښتم باب

١ ١ خداوند یهوه داسي فرمايي چه د اندروني غولي دروازه

چه مخ ئې دَ مشرق په لورِي دَيَ تړ هغو شپږو ورځو پورِي
چه په هغو کښې کار کول روا دِي بنده به وِي ليکن دَ سبت
په ورځ به خلاصه شِي او دَ نوِي مياشتي په ورځ به هم
۲ خلاصه شِي۲ او شاهزاده به باهر دَ هغي دروازِي دَ دهليز له
لارِي نه داخل کيږِي او دَ دروازِي ستني څخه به ولاړ وِي او
کوهينان به دَ هغه سيځونکې قربانۍ او دَ هغه دَ سلامتۍ قربانۍ
تيارَوِي او هغه به دَ دروازِي په آستانۍ باندِ سجده کوِي پس
له هغه به وزِي ليکن دروازه به تر نمابنام پورِي بنده
۳ نه شِي ۳ او دَ ملک خلق به دَ دغي دروازِي په مدخل باندِ
په سبتونو او دَ نوِي مياشتي په وقتونو کښې دَ خداوند په
۴ حضور سجده کوِي ۴ او سيځونکې قربانۍ چه شاهزاده به بِي دَ
سبت په ورځي دَ خداوند دَ وړاندِ وړاندِي کوِي دا دِ شپږ
۵ بِيعيبه وريِ او يو بِيعيبه مږ ۵ او دَ هديې قرباني دَ يوه مږ
دَپاره دَ يوِي ايفي او يوه دَ هديې قربانۍ دَ وريو دَپاره هرڅو
چه دَ هغه دسترس وِي او دَ يوِي ايفي دَپاره يو هين تيل
۶ او دَ نوِي مياشتي په ورځي به دا وِي يو بِيعيبه سخي او شپږ
۷ کډورِي او يو مږ او دغه به بِيعيبه وِي ۷ او هغه به دَ يوِي
هديې قربانۍ طياره کړِي يعني دَ هر يو سخي دَپاره يوه ايفه او
دَ مږ دَپاره يوه ايفه او دَ وريو دَپاره هرڅوچه دَ ده لاس
۸ رسيږِي او دَ هرِي يوِي ايفي دَپاره يو هين تيل ۸ او چه شاهزاده
ننه وزِي نو دَ هغي دهليز دَ دروازِي په لارِي به ننوزِي او په
۹ هغي لارِي به راوزِي ۹ ليکن هرکله چه دَ ملک خلق دَ پاکو
عيدونو په وقت دَ خداوند په حضور به حاضر شِي نو هغه
چه دَ قطب دَ دروازِي له لارِي نه دَ سجدې کولو دَپاره دننه
راځِي نو دَ سُهيل دَ دروازِي په لارِي به وځِي او هغوِي چه دَ

جنوب دَ دروازي له لاري دننه راځي نو دَ قطب دَ دروازي
په لاري به وزي هغه به له هغي لاري چه ورنه راننوت
۱۰ پستنه نه ځي ليکن دَ هغي له مخامخ به ووزي ۱۰ او هرکله چه
هغوي دننه ورځي نو شاهزاده به هم دَ هغو په منځ کښي لاړ
شي او هرکله چه هغوي باهر ځي نو هغه به هم راوزي -
۱۱ ۱۱ او په عيدونو کښي او دَ مقرّرو جماعتونو په وقت به دَ
هديي قرباني دَ يو سخي دَپاره يوه ايفه او دَ مي دَپاره به يوه
ايفه وي او د وريو دَپاره هرڅو چه ئي لاس رسيږي او
۱۲ دَ هري يوي ايفي دَپاره يو هين تيل ۱۲ او هرکله چه شاهزاده
نفلي قرباني يا سيځونکي قرباني تياره کوي يا دَ سلامتئ قرباني
يا نفلي قرباني دَ خداوند دَپاره نو هغه دروازه چه مخ ئي دَ
مشرق په لوري دي دَ هغه دَپاره دِ پرانتلي شي او هغه
لکه چه دَ سبّت په ورځ ئي کوي وُو هم به هغه شان به
خپلي سيځونکي قربانئ او دَ خپلي سلامتئ قربانئ تياري کوي
پس له هغه به دي باهر راووزي او پس دَده له وتلو نه
۱۳ دروازه به بنده کړي شي ۱۳ ته به هره ورځ دَ خداوند دَ
وراندِ يو کالني بي‌عيب کډوري دَ سيځونکي قربانئ دَپاره تياروي
۱۴ ته به هغه هر صباح بائد تياروي ۱۴ ته به دَ هغه دَپاره په
صباح دَ هديي قرباني وکذاري يعني شپږمه حصه دَ ايفي او
دَ پستي ميدي دَ ګډولو سره دَ تيلو دَ هين يوه دريمه حصه
۱۵ په ابدي حکم سره دَ هديي قرباني دَ خداوند دَپاره ۱۵ په دي
طور به هغوي وري او دَ هديي قرباني او تيل په صباح دَ
هميشه سيځونکي قربانئ دَپاره طياري کوي
۱۶ ۱۶ خداوند يهوه داسي فرمائي چه که چري شاهزاده
له خپلو ځامنو نه چا ته هبه وکړي نو به هغه دَ هغه دَ

ځامنو ميراث شي هغه به په وراثت سره دَ هغوي ملکيت
شي۱۷ ليکن که هغه له خپلو مريونو نه چا ته له خپل ميراث نه ۱۷
هبه وکړي نو هغه به دَ خلاصيدلو ترکاله پوري دَ هغه وي
پس له هغه به بيا دَ شاهزاده شي مګر دَ هغه ميراث به دَ
هغه دَ ځامنو دَپاره وي۱۸ او شاهزاده به دَ خلقو له ميراث ۱۸
نه نه اخلي چه هغه دَ هغوي له ميراث نه و شړي ليکن دي به
له خپل ميراث نه خپلو ځامنو ته ميراث ورکړي تاچه ځما اُمّت
هر يو له خپل ميراث نه تار په تار نه شي
۱۹ بيا هغه زه په هغه مدخل چه دَ دروازي په څنګ کښ ۱۹
وه دَ کوهنانو په مقدّسو حجرو کښ چه مخ ئي دَ قطب په لوري
وه راوستلم او ګوره دَ مغرب دَ لوري په ورستني حصي يو ځاي وُه
۲۰ نو هغه ما ته وويل چه ګوره دا هغه ځاي دي چه کوهينان په ۲۰
کښ دَ تقصير قرباني او دَ خطا قرباني ايشوي او دَ هديي قرباني به
(په تنور کښ) پخوي تاچه هغوي ئي دَ باهر په غولي کښ دَ خلقو
دَ پاکولو دَپاره و نه باسي۲۱ بيا هغه زه دَ باهر په غولي کښ راوستم ۲۱
او دَ غولي دَ څلورو کنجونو په لوري ئي بوتلم او ګوره چه دَ غولي په هر
يوه کټ کښ يو بل غولي وه۲۲ دَ غولي په څلورو کونجو کښ څلويښت څلويښت ۲۲
اوږد او ديرش ديرش پلن غولي وُو يو له بل سره پيوسته دا څلور
کونجونه په يوه پيچ وُو۲۳ او دَ هغو څلورو نه چاپيره يو ديوال ۲۳
وه او له څلورو لوريو دَ ديوال دَ لاندِ دَ ايشولو ځايونه جوړ
وُو۲۴ نو هغه راته وويل چه دا دَ ايشونکيو ځايونه دي چه ۲۴
هلته کښ دَ کور دَ خدمتګارو خلقو ذبحي و ايشوي ❊

## او وه څلويښتم باب

۱ بيا هغه زه دَ کور په دروازي راوستم او ګوره چه اوبه دَ کور ۱

دَ آستانې دَ لاندِ نه دَ مشرق په لورِي وتلې چه دَ کور مخ دَ
مشرق په لورِي وُه او اوبه دَ کور دَ ښي لورِي دَ لاندِ نه دَ
۲ مذبح دَ سُهيل له طرف نه ورِ بهيدلې ۲ بيا هغه زه دَ قطب دَ
دروازې په لارې باهر راوېستلم او زه ئې په هغې لارې کښ
چه مخ ئې دَ مشرق په لورې دَے دَ باهر په دروازې را وګرزولم
۳ اوګوره چه له ښي لورِي نه اوبه راوتلې ۳ او هغه سړي چه په
لاس کښ ئې دَ کچ کولو مزي وُو دَ مشرق په لورِي ووت او يو
زر هاتې ئې کچ کړلې او زه ئې په اوبو کښ پورې يستلم او اوبه
۴ تر ښنګرِيو پورې وې ۴ بيا ئې يو زرهاتې کچ کړلې او زه ئې دَ اوبو
په منځ کښ پورې يستلم او اوبه تر زنګنونو پورې وې بيا ئې
يو زرهاتې کچ کړلې او زه ئې (دَ اوبو) په منځ کښ پورې يستلم
۵ اوبه تر ملا پورې وې ۵ پس له هغه ئې يو زر نورې کچ کړلې
او هغه داسې درياب وه چه زه ورنه پورې وتلې نه شوم ځکه
چه اوبه ختلې وې دَ لامبو وهلو اوبه يو درياب چه تر پورې
۶ وتل نه کېدل ۶ او هغه راته ووېل چه اې آدمزاده تا دا وليدل
۷ څه ؟ نو زه ئې بوتلم او دَ درياب په غاړې ئې بيا ورسولم ۷ او
چه زه بېرته راغلم نو ګوره دَ درياب دَ غاړې په دې لورِي او په
۸ هغه لورِي ډېرې ونې وې ۸ نو هغه راته ووې چه دا اوبه دَ
مشرق دَ ملک په لورِي بهيږي او ميدان ته به کوزيږي او سمندر
ته به ځي او چه سمندر ته ووځي نو دَ هغه اوبه به ښې شي
۹ ۹ او داسې به وي چه هر يو ژوندې ځان چه خوځيږي هر چرته چه
دريابونه راشي ژوندې به شي او دَ کبانو به ډېر زيات تولي شي
ځکه چه دا اوبه به هلته کښ راشي او دغه به ښې شي او
هر يو شې چه هلته کښ دا درياب راځي ژوندې به شي ۱۰ او
۱۰ داسې به وشي چه له عين جدي تر عين اجليم پورې به په هغه

باندِ ماهي‌گیران ولاړ وِي هغوي به دَ جال غوړولو دَپاره ځاي
شِي دَ هغو کبان به دَ خپل خپل جنس په موافق دَ لوي سمندر
دَ کبانو غوندِ نهایت ډېر وِي ۱۱ لیکن دَ هغه دَ چکړو ځایونه ۱۱
او دَ هغه دَ بوټښتي ځایونه به ښه نه کړي شِي هغوي به مالګي
ته ورکړي شِي ۱۲ او درياب ته نژدي دَ هغه په غاړي دي لوري ۱۲
او هغه لوري ته دَ هر قسم دَ خوراک وني به وټوکيږي چه
پاڼي به ئي مړاوي نه شِي او چه میوي به ئي کمي نه شِي هغوي
به په خپلي خپلي میاشتي کښ نوي میوي راوړي ځکه چه دَ
هغو اوبه له مُقدِس نه راوزي او دَ هغوي میوي به دَ خوراک
دَپاره او دَ هغو پاڼي به دَ دارو دَپاره وِي
۱۳ خداوند یهوه داسي وائي چه دا هغه سرحد دَي چه ۱۳
دَ هغه په سبب سره به تاسي زمکه په میراث ووېشئ دَ
اسرائیل دَ دولسو فرقو په موافق دَ یوسف دَپاره به دوه برخي
وي ۱۴ او تاسي به یو له بل سره هغه په میراث سره واخلئ ۱۴
چه دَ هغه په باب ما خپل لاس پورته کړ چه ستاسي پلرونو
او نیکونو ته به ئي ورکړم او دا زمکه به ستاسي په میراث
پریوزي ۱۵ او دَ قطب دَ لوري دَ زمکي به دا سرحد وِي له لوي ۱۵
سمندر نه دَ حتلون لار دَ صداد تر بندره پوري ۱۶ حمات او ۱۶
بیروت او صبریم چه دَ دمشق دَ سرحد او دَ حمات دَ سرحد
په منځ کښ دِي او حصرهیتکون چه دَ حوران په کناري باندِ دي
۱۷ او له سمندر نه به سرحد دا وِي یعني حصرعینان دَ دمشق ۱۷
سرحد او قطب ته دَ قطب طرفونه او دا دَ حمات سرحد دَي
۱۸ او دَ مشرق په لوري به دَ حوران او دَ دمشق او دَ جلعاد ۱۸
او دَ اسرائیل دَ زمکي له منځ نه به یردن وِي له هغه سرحد نه
تر مشرقي سمندره پوري به ئي تاسي کچ کړئ او دا دَ مشرق

۱۹ لوري دي ۱۹ او دَ سُهیل لوري دَ سُهیل په لوري دا دي یعني
له تامار نه دَ مریبا قادیش تر اوبو له سینده تر لوي سمندره
۲۰ پوري دا دَ سُهیل بني لوري دي ۲۰ او له هغه سرحد نه دَ
حمات په برابرئ لوي سمندر به دَ مغرب لوري وي په دي
طور به تاسي دَ اسرائیل دَ فرقو په موافق زمکه په خپل منځ
۲۲ کښي وویشئ ۲۲ او تاسي به خپل ځان لره او هغوي بیګانه ؤ
لره چه ستاسي په منځ کښي اوسي او چه اولاد ستاسي په
منځ کښي وزیږوي هغه دَ میراث دَپاره په هسک سره تقسیم
کانړئ او هغوي به ستاسي په نزد دَ بني اسرائیل په منځ کښي
دَ هم وطنو په دود وي او له تاسو سره به دَ اسرائیل دَ فرقو
۲۳ په منځ کښي میراث ومومي ۲۳ او داسي به وشي چه په کومي کومي
فرقي کښي چه څوک بیګانه اوسي هلته کښي به هغه ته میراث ورکړئ
خداوند یهوه وایي ٭

# اته څلویښتم باب

۱ آ او دا دَ فرقو نومونه دي دَ قطب له کناري نه دَ حِتلون دَ لاري
تر لوري پوري حمات نه دَ تللو لار حصرعینان دَ دمشق سرحد
دَ قطب په لوري دَ حمات تر سرحده پوري چه دغه دَ هغه
۲ مشرقي او مغربي لوري دي دَ دان دَپاره یوه حصه ۲ او دَ دان
دَ سرحد سره په لوري دَ مشرق تر مغربي لوري پوري دَ آشر
۳ دَپاره یوه حصه ۳ او دَ آشر دَ سرحد سره په لوري دَ مشرق
۴ تر مغربي لوري پوري دَ نفتالي دَپاره یوه حصه ۴ او دَ نفتالي
دَ سرحد سره په لوري دَ مشرق تر مغربي سرحده پوري
۵ دَ منسي دَپاره یوه حصه ۵ او دَ منسي دَ سرحد سره په لوري
دَ مشرق تر مغربي لوري پوري دَ افرائیم دَپاره یوه حصه
۶ ۶ او دَ افرائیم دَ سرحد سره په لوري دَ مشرق تر مغربي لوري

پوري دَ روبن دَپاره يوه حصه ۷ اوْ دَ روبن دَ سرحد سره په لوري ۷
دَ مشرق تر مغربي لوري پوري دَ يهوداه دَپاره يوه حصه
۸ او دَ يهوداه دَ سرحد سره په لوري دَ مشرق تر مغربي لوري ۸
پوري هغه دَ هديې حصه به وِي چه تاسي به ئې وګناريِ پنځه وِيشت
زره ئې اوږدوالي او پلنوالي ئې له نورو حصو نه دَ يوي په موافق
له مشرقي لوري نه تر مغربي لوري پوري او مَقدس به دَ هغي په منځ
۹ کښ وِي ۹ هغه دَ هديې حصه چه تاسي به ئې دَ خداوند دَ وړاندِ
وګناريِ پنځه وِيشت زره به اوږده وِي او لس زره به پلنه وِي
۱۰ ۱۰ او دا مقدسَ هديه واله حصه دَ هغو دَپاره هو دَ کوهنانو دَپاره
به وِي دَ قطب لوريَ پنځه ويشت زره به ئې (اوږدوالي) وِي او لس زره
به ئې پلنوالي دَ مغرب په لوري او لس زره به ئې پلنوالي دَ مشرق په
لوري او پنځه ويشت زره به ئې اوږدوالي دَ سُهيل په لوري وِي او دَ
۱۱ خداوند مقدّس به دَ هغو په منځ کښ وِي ۱۱ دا به دَ هغو کوهنانو
دَپاره وِي چه دَ صدوق له ځامنو نه پاک کړِي شوِي دِي او چه
زما احکام ئې ساتلي دِي او چه ګمراه نه شول هرکله چه بني اسرائيل
۱۲ ګمراه شول لکه چه بني لاوِي ګمراه شول ۱۲ او دوي لره به دَ زمکي له
۱۳ هديي نه يوه هديه وِي يو قدس الاقدس دَ ليويانو په سرحد ۱۳ او
دَ کوهنانو دَ سرحد په موافق به دَ بني لاوي دَپاره يوه حصه وِي
پنځه ويشت زره اوږده او لس زره به پلنه وِي دَ هغي ټول اوږدوالي
۱۴ به پنځه ويشت زره او پلنوالي به ئې لس زره وِي ۱۴ او دوي به له
هغي نه هيڅ حصه نه خرڅوِي او نه به دَ زمکي وړمبي حاصل له خپلي
۱۵ قبضي نه وباسِي ځکه چه هغه دَ خداوند مقدس دِيَ ۱۵ او هغه
دَ پنځو زرو چه له پلنوالي پاتي دَه چه دَ هغو پنځه ويشتو زرو دَ وړاندِ
ده او دَ ښهر دَپاره به عام ځاي وِي او دا استوګني ځاي او
۱۶ څراګاه او ښهر به دَ هغه په منځ کښ وِي ۱۶ او دَ هغه کڅ به

دا وِيِ دَ قطب لورِيِ څلور زره پِنځه سوه او دَ سُهيل لوري
څلور زره پِنځه سوه او دَ مشرق طرف څلور زره پِنځه سوه
۱۷ او دَ مغرب خوا څلور زره پِنځه سوه ۱۷ او دَ ښهر دَ اطرافو څراګاه
دوه سوه پنځوس قطب خوا ته او دَ سُهيل ډډه دوه سوه پنځوس
او دَ مشرق طرف دوه سوه پنځوس او دَ مغرب طرف دوه سوه
۱۸ پنځوس ۱۸ او له اوږدوالي پاتي شوي چه دَ مقدّس دَ هديې والو
دَ حصّي په مقابل به وِيِ دَ مشرق ډډه لس زره او دَ مغرب
طرف به لس زره وِيِ او هغه به دَ مقدّس دَ هديې دَ حصّي
په مقابل وِيِ او دَ هغي حاصل به دَ هغو دَ خوراک دَپاره
۱۹ وِيِ چه به ښهر کښي خدمت کوِيِ ۱۹ او دَ ښهر خدمت کونکي
۲۰ به دَ اسرائيل له ټولو فرقو نه دَ هغه خدمت کوِيِ ۲۰ دَ ټولې
هديې حصّي به پنځه ويشت زره په پنځه ويشت زره تاسي به دَ
مَقدِس دَ هديې حصّه څلور کوټه دَ ښهر دَ ملکيت سره به ئې
وګذارئِ
۲۱ ۲۱ او پاتي شوي به دَ شاهزاده دَپاره وِيِ چه دَ مَقدِس
دَ هديې حصّه او دَ ښهر دَ ملکيّت دواړه طرف چه دَ هديې
دَ حصّي دَ پنځه ويشتو زرو په مقابل دَ مشرق په سرحد
او مغرب خوا ته هغه مغربي پنځه ويشت زره به دَ شاهزاده
دَپاره وِيِ او هغه دَ مَقدِس هديه او دَ کور مُقدِس به
۲۲ دَ هغه په منځ کښي وِيِ ۲۲ او دَ بنِيِ لاوِيِ له ملکيّت نه او
دَ ښهر له ملکيّت نه شاهزاده چه دَ ملکيت په منځ کښي دي
دَ يهوداه دَ سرحد او دَ بنيمين دَ سرحد په منځ کښي دَ شاهزاده
دَپاره به وِيِ
۲۳ ۲۳ او دَ باقي فرقو به داسي وِيِ چه له مشرقي سرحد نه
۲۴ تر مغربي سرحده پوري دَ بنيمين دَپاره يوه (حصّه) ۲۴ او دَ بنيمين

دَ سرحد سره له مشرقي لوري نه تر مغربي پوري دَ شمعون دَپاره
۲۵ يوه (حصه) ۲۵ او دَ شمعون دَ سرحد سره له مشرقي لوري نه
۲۶ تر مغربي لوري پوري دَ اِشکار دَپاره يوه (حصه) ۲۶ او دَ اِشکار
دَ سرحد سره له مشرقي لوري نه تر مغربي لوري پوري دَ زبلون
۲۷ دَپاره يوه (حصه) ۲۷ او دَ زبلون دَ سرحد سره له مشرقي لوري
۲۸ نه تر مغربي لوري پوري دَ جد دَپاره يوه (حصّه) ۲۸ او دَ جد
دَ سرحد سره دَ سُهيل په لوري دَ سُهيل دَ کناري سرحد
چه له تمر نه دَ مريبا قادش تر اوبو پوري قادش او ترېحرَ
۲۹ پوري تر لوي سمندره به وِي ۲۹ دا هغه زمکه دَه چه تاسي
به يَي دَ ميراث دَپاره دَ اسرائيل په فرقو په هِسک سره ووِشئ
او دا دَدوي حصي دِي خداوند يهوه وايي
۳۰ ۳۰ او دغه دَ قطب لوري ته دَ بنهر دَ وتلو ځايونه دِي
۳۱ په اندازي سره څلور زره پنځه سوه ۳۱ او دَ بنهر دروازي به
دَ اسرائيل په فرقو سره نومړي وِي دري دروازي دَ قطب په
لوري يوه دروازه دَ روبن يوه دروازه دَ يهوداه يوه دروازه
۳۲ دَ لاوِي ۳۲ او دَ مشرق په لوري څلور زره پنځه سوه او دري
دروازي يوه دروازه دَ يوسف يوه دروازه دَ بنيمين يوه دروازه
۳۳ دَ دان ۳۳ او دَ سُهيل په لوري څلور زره پنځه سوه په
اندازي او دري دروازي يوه دروازه دَ شمعون يوه دروازه
۳۴ دَ اِشکار يوه دروازه دَ زبلون ۳۴ او تر مغرب په لوري
څلور زره پنځه سوه او دري دروازي يوه دروازه دَ جد
۳۵ يوه دروازه دَ آشر يوه دروازه دَ نفتالي ۳۵ گِرداگِرد دَ
هغه اتلس زره او دَ بنهر نُوم به له هغي ورځي نه دا
وِي يهوواه شامّاه ❊

پښتو شوي له اصلي عبراني ژبي نه په قلم د غلام جلاني لکلي

נביאים

# کلام اللّٰه

## نبوت

## دانيئل نبي

په مطبع برټش اِنډ فارن
بيبل سوسيټي لندن او پيښاور

# دَ دانئیل نبي کتاب

## اول باب

۱ ۱ دَ یهوداه دَ بادشاه یهویقیم دَ بادشاهۍ په دریم کال دَ بابل بادشاه
۲ نبوکدنضر اورشلیم ته راغي او هغه ئې گیر کړ ۲ او خداوند دَ یهوداه
بادشاه یهویقیم له ځنو لوښو دَ بیت الله سره ئې دَ هغه په لاس
ورکړ ده هغه دَ سنعار په زمکه کښ دَ خپل معبود کور ته یووړل
او هغه لوښي ئې دَ خپل معبود په خزانې کښ داخل کړل
۳ ۳ او بادشاه دَ خپلو خواجه سرایانو سردار اشپناز ته حکم وکړ
چه دَ بني‌اسرائیلو دَ بادشاه له اولاد نه او له امیرانو نه دِ یوڅو راحاضر
۴ کړي ۴ هسي ځوانان چه عیب په کښ نه وِي بلکه ښائسته او په حکمت
کښ ماهره او په هري خبري کښ پوه او صاحب دَ علم وِي او چه په
بادشاهي محل کښ دَ ودریدلو لایق وِي او هغوي ته دِ دَ کسدیانو
۵ علم او ژبي ورزده کړي شِي ۵ او بادشاه هغوي لره له بادشاهي خوراک
نه او دَ خپل څښاک له شرابو نه دَ هري ورځي بخره مقرره کړه په دي
شان ئې هغوي تر دریو کالو پوري وپالل چه په آخر هغوي دَ بادشاه
۶ په حضور ودریږي ۶ او دَ هغوي په مینځ کښ له بني‌یهوداه نه دانئیل
۷ او حنانیاه او میشائیل او عزریاه وُو ۷ او دَ خواجه سرایانو سردار له هغو
نه په هر یوه باندِ نوم کیښود په دانئیل ئې بلطشضر او په حنانیاه ئې
شدرک او په میشائیل ئې میسک او په عزریاه ئې عبدنجو
۸ ۸ لیکن دانئیل بخپل زړه کښ اراده وکړه چه خپل ځان به دَ
بادشاهي خوراک او دَ هغه دَ څښاک له شرابو نه ناپاک نه کړي او ده
۹ دَ خواجه سرایانو سردار ته عرض وکړ چه خپل ځان ناپاک نه کړي ۹ او
الله دانئیلِ ته دَ خواجه سرایانو دَ سردار په نظر کښ فضل او رحمت

۱۰ ورکړ ۱۰ او دَ خواجه سرایانو سردار دانئیل ته وویل چه زه له خپل خاوند
بادشاه نه چه ستاسو خوراک او څښاک ئې مقرر کړي دي ویریږم
نو که چرې ستاسي څهرې دَده په حضور کښې ستاسي دَ ملګريو له
څهرو نه خپه معلومي شي نو تاسي به څما سر دَ بادشاه په خطري
۱۱ کښې واچوئ ۱۱ بیا دانئیل مالسر ته چه دَ خواجه سرایانو سردار په دانئیل
او په حنانیاه او په میشائیل او په عزریاه ئې مقرر کړي وه وویل چه
زه تاته زارې کوم چه ته تر لسو ورځو پورې دَ خپلو غلامانو آزمائښت
وکړه او مونږ ته دَ خوراک دَپارَ دال او دَ څښلو دَپارَ اوبه راکوه
۱۳ ۱۳ پس له هغه دِ څمونږ څهرې دَ هغو ځوانانو له څهرو سره چه دَ
بادشاه خوراک خورې ستا په حضور کښې وکتلې شي پس دَ هغه
۱۴ لکه چه ته وویني هم هسې له خپلو غلامانو سره وکړه ۱۴ نو ده دَ
۱۵ هغوي دا خبره وسنله او تر لسو ورځو پورې ئې وازمائیل ۱۵ او پس له
لسو ورځو ئې دَدوي مخونه دَ هغو ټولو ځوانانو له مخونو سره چه دَ
بادشاه له خوراک ئې خوړل زیات ښائسته او په غوښه ځاربه ښکاره
۱۶ شول ۱۶ نو مالسر دَدوي خوراک او دَدوي شراب چه وله مقرر وُو
۱۷ موقوف کړل او دال ئې ورکاوه ۱۷ او الله دغو څلورو ځوانانو ته په
معرفت او په حکمت کښې علم او هنر ورو بانبه او دانئیل په هر رنګ
۱۸ رؤیاؤ او خوبونو پوهان وه ۱۸ او چه هغه ورځې تیرې شوې چه بادشاه
په کښې ویلي وُو چه پس له دغو به هغوي په وړاندِ راولي دَ خواجه سرایانو
۱۹ سردار هغوي دَ نبوکدنضر حضور ته وَر وستل ۱۹ او بادشاه له هغوي
سره خبرې وکړې او په هغوي کښې دَ دانئیل او دَ حنانیاه او دَ میشائیل
او دَ عزریاه په شان هیڅوک وسندلې نه شه دې دَپارَ هغوي دَ بادشاه
۲۰ په حضور ودریدل ۲۰ او دَ هر قسم حکمت او دَ دانائۍ په باب کښې
هرڅه چه بادشاه له دوي نه پوښتنه وکړه نو له ټولو فال اچونکیو او له
نجومیانو چه دَ هغه په ټول بادشاهت کښې وُو دوي ئې لسچنده زیات

۲۱ و سوندل ۲۱ او دانئیل دَ کورس بادشاه تر اول کال پورې وه ❊

# دوېم باب

۱ ۱ او دَ نبوکدنضر دَ بادشاهئ په دوېم کال کښې نبوکدنضر خوبونه
ولیدل چه له هغه نه ئې روح وترسېده او خوب ئې ورنه وتښتېده
۲ ۲ نو بادشاه حکم وکړ چه نجومیان او جادوګران او فال اچونکي او
کسدیان دِ راوبللې شي چه دَ بادشاه خوبونه ور وښیي نو هغوي
۳ راغلل او دَ بادشاه دَ وړاندِ ودرېدل ۳ او بادشاه ورته ووېل چه
ما یو خوب لیدلې دې او دَ هغه خوب دَ پېژندلو دَپاره مې روح ترسېږي
۴ ۴ نو کسدیانو دَ بادشاه دَ وړاندِ په آرامي ژبې عرض وکړ چه اې
بادشاه ته دِ تر ابدَ پورې ژوندې اوسې خپلو مریونو ته خوب ورونښیه
۵ نو مونږ به دَ هغه تعبیر وکړو ۵ بادشاه په ځواب کښې کسدیانو ته ووېل
چه دا خبره له ما نه تللې دَه که تاسې خوب را په یاد نه کانړئ او تعبیر
ئې ونه کړئ نو تاسې به ټکړې ټکړې کړې شئ او ستاسې کورونه به
۶ چارچوبئ کړې شي ۶ او که خوب راښکاره کړئ او تعبیر ئې نو له ما نه
به تاسې بخششونه او انعامونه او ډېر عزّت وموئ دې دَپاره خوب
۷ راښکاره کړئ او تعبیر ئې ۷ هغوي بیا په ځواب کښې ورته ووېل چه
بادشاه دِ خپلو مریونو ته خوب ووائي نو مونږ به دَ هغه تعبیر ښکاره
۸ کړو ۸ بادشاه په ځواب کښې ووېل چه زه په یقین سره پوهېږم چه
تاسو له وقت فائده اخلئ ځکه چه تاسې وینئ چه دا خبره له ما نه
۹ تللې دَه ۹ لیکن که تاسې خوب را ښکاره نه کړئ نو ستاسو دَپاره یو
حکم دې ځکه چه تاسې دَ دروغو او دَ بهانې خبرې جوړې کړې دِي
تا چه ځما دَ وړاندِ خبرې وکړئ تر هغه پورې چه وقت تېر شي پس
خوب راوښیئ نو زه به پوه شم چه دَ هغه تعبیر هم بیانولې شئ -
۱۰ ۱۰ کسدیانو بادشاه ته ځواب ورکړ وئې وېل چه په ټولې دنیا کښې ځو

داسې هيڅ يو سړی نشته چه دَ بادشاه خبره وربښکاره کړي شي اونه
هيڅ بادشاه يا امير يا حاکم داسې شته دی چه داسې سوال ئې له
١١ چا نجومي يا له جادوګره يا له کسدي نه کړی وي ١١ او دا خبره چه
بادشاه ئې پوښتنه کوي ډيره ګرانه دَه او بغير له خدايانو چه دَ هغو
استوګنه خود له بشر سره نه دَه هيڅوک نشته دی چه دَ بادشاه دَ وړاندِ
١٢ ئې وربښکاره کړي شي ١٢ له دي سببَ بادشاه په قهر شه او غضب
ئې ځيده زيات شه او حکم ئې وکړ چه ټول حکيمان دَ بابل دِ هلاک
١٣ کړي شي ١٣ نو دا حکم ووت چه حکيمان په قتل کيدلو وُو نو دانئيل
١٤ او دَ هغه ملګري ئې ولټول چه وئې وژني ١٤ پس دانئيل دَ بادشاه دَ
خاصه دارانو سردار اريوک ته چه دَ بابل دَ حکيمانو دَ قتلولو دپارَ
١٥ وروتلی وُه په هوښياري او په دانائي سره ځواب ورکړ ١٥ او دَ بادشاه
دَ خاصه دارانو سردار په ځواب کښ ورته ووئيل چه دا حکم ولي دا
هسې ضروري له بادشاه نه وتلی دی نو اريوک دانئيل ته دَ هغه حال
١٦ ووايه ١٦ او دانئيل دننه لاړ شه بادشاه ته ئې عرض وکړ چه ماته لږ
وار وکړه نو زه به دَ بادشاه په حضور دَ هغه تعبير بيان کړم
١٧ ١٧ نو دانئيل خپل کورته لاړ حنانياه او ميشائيل او عزرياه چه
١٨ دَده ملګري وُو خبر ئې کړل ١٨ تاچه دوی دَدي راز په باب کښ دَ
آسمان له الله نه رحمتونه وغواړي هسې نه چه دانئيل او دَده ملګري
١٩ دَ بابل له حکيمانو سره ووژلي شي ١٩ پس په دانئيل باندِ دَ شپي په
خوب کښ هغه راز ظاهر شه نو دانئيل دَ آسمان الله ته مبارک ووايه
٢٠ ٢٠ دانئيل په ځواب کښ ووئيل چه دَ الله نوم دِ تر ابدَ پوري مبارک
٢١ وي چه حکمت او قدرت هم دَده دی ٢١ څکه چه دی وقتونه او زماني
بدلي کوي دی بادشاهان معزول کوي او بادشاهان ودروي دی
٢٢ حکيمانو ته حکمت او دانايانو ته دانائي عنايت کوي ٢٢ دی ژور او پټ
څيزونه ظاهر کوي او هرڅه چه په تياري کښ دي دی ئې پيژني او

٢٣ نور له ده سره اوښي ٢٣ زه ستا شکر کوم او ستا ثنا کوم اي خدا دَ
پلرونو الله چه ما ته دِ حکمت او قوّت را و باخښنه او هغه څيز چه
موږ درنه وغوښت اوس په ما دِ ظاهر کړ ځکه چه تا دَ بادشاه خبره
٢٤ په موږ ظاهره کړي ده ٢٤ پس له هغه دانئيل اريوک ته چه بادشاه دَ
بابل دَ حکيمانو دَ قتل دَپارَ مقرّر کړي وَه ورغي او هغه ته ئي داسي
و ويل چه دَ بابل حکيمان مه قتل کوه ما دَ بادشاه حضور ته وروله زه
به ئي بادشاه ته تعبير ور ښکاره کړم
٢٥ ٢٥ نو اريوک په جلتئ سره دانئيل دَ بادشاه حضور ته وروست
او داسي عرض ئي وکړ چه ما دَ يهوداه له بنديانو نه يو سړي موندلي
٢٦ دَي چه بادشاه ته تعبير وروښيي ٢٦ بادشاه دانئيل ته چه په بيلطشضر
نومړي وه په ځواب کښ وويل چه ته هغه خوب چه ما ليدلي دَي او
٢٧ دَ هغه تعبير ما ته راښيلي شي څه؟ ٢٧ دانئيل دَ بادشاه په حضور
ځواب ورکړ او و ئي ويل هغه راز چه بادشاه ئي پوښتنه وکړه حکيمان
او نجوميان او جادوګران او فال اچونکي ئي بادشاه ته ښکاره کولي
٢٨ نه شي ٢٨ ليکن په آسمان باندِ يو الله دَي چه ټول رازونه ښکاره
کوي او هغه نبوکدنضر بادشاه وپوهو؛ چه په آخرو ورځو کښ به څه
وشي ستا خوب او ستا دَ سر رؤيا چه تا پخپل پلنګ وليدل دا
٢٩ دي ٢٩ تا اي بادشاه پخپل پلنګ باندي فکر کاوه چه په آينده کښ به
څه وشي نو هغه چه دَ رازونو پرانونکي دَي په تا باندِ ظاهر کوي چه
٣٠ څه به وشي ٣٠ ليکن دا راز په ما باندِ ښکاره کړي شه دي دَپارَ نه دَي
چه زه دَ چا بل ژوندِي په نسبت زيات حکمت لرم بلکه دَ هغو دَپارَ چه
دَدي تعبير بادشاه ته بيان کړي شِي او چه ته دَ خپل زړه په فکرونو
٣١ پوه شي ٣١ اي بادشاه تا نظر کاوه او ګوره چه يو لوي صورت وه هغه
لوي صورت چه بريښنا ئي بيحده وه ستا دَ وړاندِ ودريده او دَ هغه
٣٢ شکل هيبتناک وه ٣٢ دَ هغه صورت سر دَ سوچه سرو زرو وه

دَ هغه سینه او دَ هغه بازوګان دَ سپینو زرو دَ هغه ګیده او
٣٣ ورنونه دَ زیړو ٣٣ دَ هغه پړکي دَ اوسپني او دَ هغه پښي څه دَ
٣٤ اوسپني او څه دَ خټي وي ٣٤ او تا هغه کوت تر هسي حده چه یو
کاڼي بي دَ چا له لاسو پریکړي شوي وه او دَ هغي صورت پښي چه څه
دَ اوسپني او څه دَ خټي وي و ئې ویشتلي او هغه ئې ټکړي ټکړي کړي
٣٥ ٣٥ پس له هغه اوسپنه او خټي او زیړ او سپین او سره زر یو ځاي
سره ټکړي ټکړي کړي شول او دَ اوړي دَ درمند دَ بُوسو په دود
شول او باد والوزول تر هسي حده چه ځاي ئې مونده نه شه او
هغه کاڼي چه هغه صورت پښي ئې وویشت یو لوي غر شه او ټوله
٣٦ زمکه ئې ډکه کړه ٣٦ هغه خوب دا دَي او مونږ هغه تعبیر دَ بادشاه
٣٧ په حضور بیان کړُو ٣٧ اي بادشاه ته دَ بادشاهانو بادشاه یي دي
دَپارَ چه دَ آسمان الله تا ته یوه بادشاهي او قدرت او قوّت او
٣٨ دبدبه درکړي دِي ٣٨ او هرچرته چه بني‌آدم استوګنه کوي دَ صحرا
درندګان او دَ هوا مرغان ئې ستا په لاس کښې کړي دِي او ته ئې په
٣٩ هغو ټولو حاکم کړي یي هم ته هغه دَ سرو زرو سر یي ٣٩ او پس له
تا به یو بل بادشاهت پورته شِي چه له تا نه به کم وِي او پس له
هغه به یو بل بادشاهت دَ زیړو چه په ټولي زمکي به بادشاهي
٤٠ وکړي ٤٠ او څلورم بادشاهت به دَ اوسپني په دود مضبوط وِي او
لکه چه اوسپنه ماتول کوِي او په ټولو څیزونو غالبه کیږي هو دَ
اوسپني په دود چه ټول څیزونه ټکړي ټکړي کوِي هم هسي به ئې
٤١ هغه ټکړي ټکړي کوِي او مات به ئې کړي ٤١ او هغه چه تا ولیدل
چه پښي او ګوتي ئې څه خو دَ کلال دَ خټي وي او څه دَ اوسپني وي
نو په هغه بادشاهت کښې به ویش وشِي مګر لکه چه تا ولیدل چه
په هغه کښې اوسپنه دَ چکړو له ختو سره ګډه وَه نو دَ اوسپني طاقت
٤٢ به په کښې وِي ٤٢ او لکه چه دَ پښو ګوتي څه دَ اوسپني او څه دَ

نښتي وي نو هغه بادشاهت به څه قدر قوي او څه قدر ضعيف وي
۴۳ ۴۲ او لکه چه تا وليدل چه اوسپنه دَ چکړو له خټو سره گډه وه
نو هغوي به خپل ځانونه دَ بشر له نسلَ سره گډ کړي ليکن لکه
چه اوسپنه له خټې سره ميل نه کړي هم هسي به هغوي ځبله
۴۴ ونه نښلي ۴۳ او دَ هغو بادشاهانو په ورځو کښې به دَ آسمان الله يو
بادشاهت ودروي چه تر ابدَ پوري به ورک کړي نه شي او هغه بادشاهت
به بل قوم ته پاتي نه شي هغه به ټول بادشاهتونه ټکړې ټکړې او فنا
۴۵ کړي او هغه به تر ابدَ پوري قايم وي ۴۵ لکه چه تا وليدل چه هغه
کاڼي بي دَ لاس له پرېکولو له غره نه بخپله راپرېکړ شه او هغه
اوسپنه او زيړ او خټې او سپين او سره زر ئي ټوټې ټوټې کړل
خداي تعالیٰ بادشاه ته هغه څه ورښکاره کړي دي چه په آينده کښې
۴۶ کېدونکي دي او دا خوب يقيني دَي او تعبير ئي يقيني ۴۶ پس له دغه
نبوکدنضر بادشاه پرمخ پرېوت او دانيل ته ئي سجده وکړه او حکم ئي
۴۷ وکړ چه ده ته دِ هديه او عِطر ورکړې شي ۴۷ بادشاه دانيل ته ځواب
ورکړ و ئي ويل چه په رښتيا سره ستا الله دَ الهانو الله او دَ بادشاهانو
رب دَي او دَ رازونو ظاهر کونکي دَي ځکه چه ته دَ دي راز ظاهر کونکي
۴۸ شوي ۴۸ پس بادشاه دانيل سرفراز کړ او ډيري پيشکشې ئي ورکړې
او په ټول وطن دَ بابل ئي حاکم ورکړه او دَ بابل دَ حکيمانو په
۴۹ سردارانو ئي امير کړ ۴۹ نو دانيل بادشاه ته عرض وکړ او ده سدرک
او ميشک او عبدنجو دَ بابل دَ وطن په کارروائي باندِ مقرر
کړل ليکن دانيل دَ بادشاه په دروازي کښې وه ✣

## دريم باب

۱ او نبوکدنضر بادشاه يو صورت دَ سرو زرو جوړ کړ چه اوږدوالي
ئي شپېته هاتي او پلن‌والي ئي شپږ هاتي وه او هغه ئي دَ دورا په

۲ میدان دَ بابل په صوبه کښې ودراوه ۲ نو نبوکدنضر بادشاه واستول
چه امیران او حاکمان او سرداران دَ لښکر او منصفان او خزانچیان
او مشیران او منصب داران او دَ ټولو صوبو امیران را جمع کړي تاچه
دوي دَ هغه صورت چه نبوکدنضر بادشاه ودرولې وه دَ تقدیس
۳ دَپارَ راشي ۳ پس له هغه امیران او حاکمان او سرداران دَ لښکر
او منصفان او خزانچیان او مشیران او منصب داران او دَ صوبو
ټول امیران دَ هغه صورت دَ تقدیس کولو دَپارَ چه نبوکدنضر بادشاه
ودرولې وه راټول شول او دوي دَ هغه صورت دَ وړاندې چه نبوکدنضر
۴ درولې وه ودریدل ۴ نو یوه آواز کوونکي په لوړ آواز سره ناره وکړه چه
اي قومونو اي ټولیو او اي دَ بیلو ژبو ویونکیو ستاسي دَپارَ دا حکم
۵ دَی ۵ چه هغه وقت چه دَ قرنا او دَ توريُ او دَ ستار او دَ رباب او
دَ بربط او دَ بین او دَ هر قسم ساز آواز واورئ نو دَ هغه سرو زرو
دَ صورت دَ وړاندې چه نبوکدنضر بادشاه ودرولې دي پرمخ پریوزئ او
۶ ورته سجده وکړئ ۶ او هرڅوک چه پرمخ پرې نه وزي او سجده ونه کړي
۷ نو هغه دم به په لمبې وهونکي بټه کښې واچاولې شي ۷ نو هغه دم
چه ټولو خلقو دَ قرنا او دَ توريُ او دَ ستار او دَ رباب او دَ بربط
او دَ هر قسم دَ ساز آواز واوریده نو ټول قومونه او ټولي او بیل ژبې
ویونکي دَ هغه صورت دَ وړاندې چه نبوکدنضر بادشاه ودرولې وه پرمخ
۸ پریوتل او سجده ئې ورته وکړه ۸ نو هغه وقت یو څو کسدیان راغلل
۹ او په یهودیانو ئې فریاد وکړ ۹ هغوي دَ نبوکدنضر بادشاه دَ وړاندې
عرض وکړ او وئې ویل چه اي بادشاه ته دې تر ابده پورې ژوندې
۱۰ اوسې ۱۰ اي بادشاه تا حکم کړې دَی چه هرڅوک چه دَ قرنا او دَ توريُ
او دَ ستار او دَ رباب او دَ بربط او دَ بین آواز واورې نو دَ هغه
سرو زرو دَ صورت دَ وړاندې دې ټیټ شي او سجده دې ورته وکړي -
۱۱ ۱۱ او هرڅوک چه ټیټ نه شي او سجده ونه کړي نو به دَ یوې لمبه

١٢ وهونكي بجي به منځ كښ واچاوه شي ١٢ اوس څو يهوديان دِي چه تا
هغوي دَ بابل دَ وطن په كاروبار مقرّر كړي دِي يعني شدرك او ميشك
او عبدنجو دغو سړو اي بادشاه ستا تعظيم كړي نه دَي او ستا دَ
معبودانو عبادت نه كوِي او دَ هغه سرو زرو صورت ته چه تا ودرولي
١٣ دَي سجده نه كوِي ١٣ نو نبوكدنضر له قهرَ او له غضبَ حكم وكړ چه
شدرك او ميشك او عبدنجو دِ را حاضر كړي نو هغوي هغه سړي دَ
١٤ بادشاه په حضور حاضر كړل ١٤ نبوكدنضر امر وكړ او هغوي ته ئي
وويل اي شدرك او ميشك او عبدنجو دا خبره رښتيا دَه چه تاسي
څما دَ معبودانو عبادت نه كوئِ او دَ هغه سرو زرو صورت ته چه
١٥ ما ودرولي دَي سجده نه كوئِ ١٥ اوس كه تاسو طيار شئِ هغه وقت
چه دَ قرنا او دَ توريئِ او دَ ستار او دَ رباب او دَ بربط او دَ بين
او دَ هر قسم دَ ساز آواز واوريئِ نو هغه دم دَ هغه صورت دَ وړاندِ
چه ما جوړ كړي دَي پړمخ پريوزيئِ او سجده ورته وكړيئِ (نو ښه) ليكن
كه سجده ونه كړيئِ نو هغه دم به دَ اور دَ لنبي وهونكي بجي په منځ
كښ واچولي شئِ او هغه خداي څوك دَي چه تاسي څما له لاس نه
١٦ خلاص كړي ١٦ شدرك او ميشك او عبدنجو په څواب كښ بادشاه نه
وويل چه اي نبوكدنضرَ په دي خبري كښ څواب دركول مونږ ضرور
١٧ نه گڼرو ١٧ كوره هغه څمونږ الله دَي چه مونږ ئي عبادت كوُو هغه
مونږ دَ اور له لنبي وهونكي بجي نه خلاصولي شي او هغه به اي
١٨ بادشاه مونږ ستا له لاس نه خلاص كاندِ ١٨ او كه نه نو اي بادشاه
تا ته دِ معلوم وِي چه مونږ به ستا دَ معبود عبادت ونه كړو او
١٩ هغه دَ سرو زرو صورت ته چه تا درولي دَي سجده به ونه كړو ١٩ نو
نبوكدنضر له غصّي نه ډك شه او دَده دَ څهري رنګ په شدرك
او په ميشك او په عبدنجو باندِ بدل شه او حكم ئي وكړ چه دَ
٢٠ بجي اور دِ له پخوانئي نه اوه چنده زيات كاندِ ٢٠ او دَ لښكر زوراورو

پهلوانانو ته ئي حکم وکړ چه شدرک او ميشک او عبدنجو دِ وتړي
۲۱ او په لنبي وهونکي بجي کښ دِ ئي وغورزوي ۲۱ نو هغه سړي له خپلو
پړنکونو او له تميصونو او له څادرونو او له جامو سره وتړل شول او
۲۲ په لنبي وهونکي بجي کښ وغورزولي شول ۲۲ څکه چه دَ بادشاه حکم
ضروري وه او بجه زياته توده وه دَ اور تاؤ هغه سړي چه شدرک
۲۳ او ميشک او عبدنجو ئي ور پورته کړي وُو هلاک کړل ۲۳ او دا دري
سړي يعني شدرک او ميشک او عبدنجو تړلي دَ لنبي وهونکي بجي په
۲۴ منځ کښ پريوتل ۲۴ هغه وخت نبوکدنضر بادشاه حيران شه او زر
پورته شه ارکانو دَ دولت ته ئي اسر وکه او و ئي ويل چه ما دري
۲۵ سړي تړلي دَ اور په منځ کښ و نه غورزول څه؟ ۲۵ هغوي په ځواب
۲۶ کښ وويل اي بادشاه رښتيا دِي ۲۶ هغه په ځواب کښ وويل گوري زه څلور سړي
پرانيستي دَ اور په منځ کښ وينم چه گرزي او هيڅ ضرر نه وررسي او دَ څلورم صورت لکه څوي دَ
الٰهانو نو نبوکدنضر دَ اور دَ لنبي وهونکي بجي په دروازي باندِ راغي
ناره ئي وکړه و ئي ويل چه اي شدرک او ميشک او عبدنجو دَ الله
تعالی بندگانو دَ باندِ راووزئ او دلته راشئ نو شدرک او ميشک
۲۷ او عبدنجو دَ اور له منځ نه راووتل ۲۷ او ټول اميران او حاکمان
او سرداران دَ لښکر او دَ بادشاه مشيران جمع شول په هغو سړيو
ئي نظر وکړ چه له اور نه دَ هغو په بدنونو تاثير شوي نه وه او نه
دَ هغو دَ سر ويښته وِيلي شوي وه او نه دَ هغو پړنکونو کښ څه فرق
۲۸ شوي وُه او نه دَ اور بوي په هغوي معلوم کيده ۲۸ نو نبوکدنضر امر
وکه و ئي ويل چه دَ شدرک او دَ ميشک او دَ عبدنجو الله دِ مبارک
وِي چه خپله فرښته ئي راواستوله او خپل بندگان چه په ده ئي توکل
وکړ خلاص ئي کړل چه دَ بادشاه خبره ئي بدله کړي ده او خپل بدنونه
ئي ور وسپارل تاچه بغير دَ خپل الله نه دَ بل معبود عبادت او
۲۹ سجده و نه کړي ۲۹ دَ دي دپاره زه حکم کوم چه هر يو قوم يا ټولي يا

ژبي ويونکي چه دَ شدرک او دَ ميشک او دَ عبدنجو دَ الله په حق
کښ کومه نالايقه خبره وکړي نو هغوي به ټکړي ټکړي کړي شي او
کورونه به ئي چارچوبئ کړي شي ځکه چه بل هيڅ خداي نشته چه
۳۰ دا رنګ خلاصولي شي ۳۰ نو بادشاه شدرک او ميشک او عبدنجو
دَ بابل به په صوبه کښ سرفراز کړل ❊

# څلورم باب

۱ ۱ دَ نبوکدنضر بادشاه له طرف نه دِ دَ ټولو خلقو او ټوليو او
ژبي ويونکيو دَپارَ چه په ټول روي زمين اوسي سلامتي ستاسي دِ
۲ زيانه وِي ۲ ما ته ښه ښکاره شوه چه دَ هغو نخښو او دَ عجائبو کارونو
۳ چه خداي تعالیٰ راسره کړي دِي خبر سو کړم ۳ دَ هغه نبي څومره
لوي دِي او دَده عجائب کارونه څومره قوتناک دِي دَده بادشاهت يو
ابدِي بادشاهت دَي او دَده سلطنت پيړئ په پيړئ ٠
۴ ۴ زه نبوکدنضر پخپل کور کښ په آرام ناست وم او په خپل
۵ محل کښ کامياب شولم ۵ پس له هغه مِ يو خوب وليد چه زه ورنه
ترسناک شولم او هغو فکرونو چه ما په پلنګ وکړل او هغو رؤياؤ
۶ چه څما په سر کښ وي وترسولم ۶ دي دَپارَ مِ حکم وکړ چه دَ بابل
ټول حکيمان دِ څما دَ وړاندِ حاضر شي تا چه دَ هغه خوب تعبير مِ وکړي
۷ ۷ نو ټول مجوسيان او نجوميان او کسديان او فال اچونکي حاضر شول
او ما هغوي ټولو ته خپل خوب بيان کړ ليکن هغوي ما ته دَ هغه
۸ تعبير ونه کړ ۸ آخر ته مِ دانئيل دَ وړاندِ راغي چه نوم ئي بيلطشضر
وُه چه څما دَ خداي هم داسي نوم وُه چه په هغه کښ دَ پاکو
۹ خدايانو روح دَي نو ما دَ هغه دَ وړاندِ خوب بيان کړ ۹ چه اي
بيلطشضرَ دَ مجوسيانو سردارَ دي دَپارَ زه پوهيږم چه دَ پاکو خدايانو
روح په تا کښ دَي او چه هيڅ راز درته ګران نه دَي نو دَ هغه

۱۰ خوب رؤيا چه ما ليدلي دي او دَ هغه تعبير بيان کړه ۱۰ چه څما
دَ سر رؤيا څما په پلنګ داوي ماکتل او ګوره چه دَ زمکي په منځ
۱۱ کښ يوه ونه دَه او ډيره هسکه وه ۱۱ نو هغه ونه لويه شوه او مضبوطه
شوه او دَ هغي اوچتوالي تر آسمانَ ورسيد او هغه دَ زمکي تر انتها
۱۲ پوري ښکاره کيدله ۱۲ او دَ هغي پاڼي ښائسته وي او ميوي بسياري
وي او په هغي کښ دَ ټولو دَپارَ خوراک وه دَ ميدان ښارويو دَ هغي
تر سوري لاندِ آرام کاوه او دَ هوا مرغان به دَ هغي په ښاخونو کښ
۱۳ اوسيدل او ټولو بشر له هغي نه خوراک مونده ۱۳ ما په خپل پلنګ
باندِ دَ خپل سر په رؤياؤ کښ وليدل نو څه ګورم چه يو ساتونکي
۱۴ هو يو قدُسِي له آسمان نه راکوز شه ۱۴ چه هغه لويَ ناره وکړه
و ئې ويل چه ونه پريکانړئِ او ښاخونه ئې وتراشئِ او پاڼي ئې وتوبئ
او ميوه ئې وخنديئِ ښاروي دِ دَ هغي له لاندِ نه لار شي او مرغان
۱۵ دِ دَ هغي له ښاخونو نه ۱۵ په دي هم دَ هغي دَ بيخونو سته په زمکه
کښ پريږدئِ هو دا دَ اوسپني او دَ زيړو په زنځيرونو تړلي دَ ميدان
په شنو وابنو کښ ئې پريږدئِ او هغه دِ دَ آسمان له شبنم نه لونده
۱۶ وِي او دَ زمکي په وابنو کښ دِ دَ څناورو سره بخره وِي ۱۶ دَ هغي
زړه دِ دَ سړي توب نه بدل شي او هغه ته دِ دَ حيوان زړه ورکړي
۱۷ شي او اوه زمانئ دِ په هغه تيري شي ۱۷ دا حکم دَ نګهبانانو له
فيصلي نه دَي او دا خبره دَ قُدسِيانو دَ دعاؤ په موافق دَه تا چه
ژوندِي خلق ئې وپيژني چه حق تعالیٰ دَ سړيو په بادشاهت کښ
حکومت کوِي او هرچا ته چه ئې غواړي هغه ته ئې ورکوِي بلکه له
۱۸ سړيو نه يو ادنیٰ سړيَ په هغه ودروِي ۱۸ ما نبوکدنضر دا خوب
ليدلي دَي اوس ته اي بيلطشضرَ دَ هغه تعبير بيان کړه څکه چه
څما په ټول مُلک کښ ټول حکيمان دا همره طاقت نه لري چه په تعبير
مِ و پوهوِي مګر په تاکښ دا طاقت شته څکه چه دَ پاکو خدايانو

روح په تا کښې دَي

۱۹ ۱۹ نو دانئیل چه په بیلطشضر نومړي وه تر یوه ساعتَ پورې
حیران پاتې شه او دَده اندیښنو دَيَ و ترساوه نو بادشاه ور ته
وویل چه اې بیلطشضرّ له خوبَ او له تعبیرَ ئې و نه ترسیږې بیلطشضر
په ځواب کښې وویل چه اې ځما خاوندَ دا خوب دِ دَ هغو دپارَ وِي چه
۲۰ له تا سره کینه لرِي او دَدغه تعبیر دِ ستا دَ ښمنانو دپارَ ۲۰ هغه ونه
چه تا ولیـــــده چـــــه لویه شوه او مضبوطه شوه اودَ هغې
بلندِي تر آسمانَ پورې ورسیده او دَ زمکې تر انتها پورې ښکاره کیده
چه پاڼې ئې ښائسته وې او میوه ئې بسیاره وَه او په هغې کښې دَ
ټولو خوراک وُه او چه تر سورِي لاندِ ئې دَ صحرا حیوانانو استوګنه
۲۲ کوله او په ښاخونو ئې دَ هوا مرغان اوسیدل ۲۲ نو اې بادشاه هغه
هم ته یې چه لوې او مضبوط شوې یې ځکه چه ستا بزرګي لویه بلکه تر
آسمانَ پورې رسیدلي دَه او ستا بادشاهت دَ زمکې تر انتها پورې -
۲۳ ۲۳ او چه بادشاه ولیدل چه یو نګهبان یو قدسِي له آسمان نه راکوز
شه او وئې ویل چه ونه پرې کانړئِ او برباد ئې کانړئِ په دې هم دَهغې
دَ بیخونو ستنه په زمکه پرېږدئِ هو هغه دَ اوسپني او دَ زیړو په بند
تړلې دَ میدان په شنو واښو کښې چه دَ آسمان په شبنم لونده وِي تر
هغه پورې چه په هغه اوه زماني تیرې شِي دَ هغه بخره به دَ زمکې
۲۴ له حیوانانو سره وِي ۲۴ اې بادشاه دَ هغهِ تعبیر او دَ حق تعالیٰ هغه
۲۵ حکم چه ځما په خاوند بادشاه باندِ راغي دا دَيَ ۲۵ چه تا به له سړیو
و شړِي او دَ صحرا له حیوانانو سره به و اوسې او په تا به دَ غوایانو
غوندِ واښه وخورِوِي او هغوي به تا دَ آسمان له شبنم نه لونده وِي
او په تا باندِ به اوه زماني تیرې شِي تر هغه پورې چه نه پوه شې چه
خداي تعالیٰ دَ انسان په ملک کښې بادشاهت کوِي او هرچا ته چه
۲۶ ئې مرضِي وِي ورکوِي ئې ۲۶ او دا چه هغوي حکم وکړ چه دَ ونې دَ بیخونو

ستره پرېږدي نو دغه دي چه پس له هغه چه ته پوه شي چه دَ
بادشاهئ قدرت دَ آسمان له لوري دئ نو هم ته به په خپلې بادشاهئ
۲۷ باندِ بيا ودرېږې ۲۷ دې دَپارَ اي بادشاه ستا په حضور دِ زما نصيحت
قبول وي او ته خپلې خطايې په صداقت سره او خپلې بدکارئ دَ
مسکينانو په رحم کولو سره ماتې کړه که داسي وشي نو کوندِ ستا آسودګي
۲۸ به اوږده شي ۲۸ دا ټول حالونه په نبوکدنضر بادشاه راغلل او دَ دوه لسو
مياشتو په آخر کښ چه دې دَ بابل دَ بادشاهت په محل کښ ګرزيده ۲۹
۳۰ ۳۰ بادشاه وفرمايل او وئي ويل چه دا هغه لوي بابل نه دې څه؟
چه ما دَ قدرت په زور سره جوړ کړ چه هغه دَ بادشاهي اوسيدنې
۳۱ دَپارَ او دَ حضرت دَ جلال دَپارَ ۳۱ او چه دَ بادشاه له خولې نه دا
خبره ووته دستي له آسمان نه يو آواز راغي چه اي نبوکدنضر بادشاه
۳۲ تا ته ويلې کېږي چه بادشاهت له تا نه لاړ شه ۳۲ او تا به له سړيو
وشړي او دَ ميدان له حيوانانو سره به اوسې او په تا به دَ غوايه په
دود واښه وخوري او اوه زمانې به په تا تېرې شي تر هغه پورې چه
ته پوه شي چه خداى تعالىٰ دَ آدميانو په ملک کښ بادشاهي کوي او
۳۳ هر چا ته چه ئې مرضي وي هغه ته ئې ورکوي ۳۳ هم هغه وقت چه
دَ نبوکدنضر بادشاه دا خبره په آخر ورسيده او دې له سړيو وشاړه
شه او دَ غوايانو په دود ئې واښه خوړل او دَ ده صورت دَ آسمان له
شبنم نه لوند کيده تر دې حده چه دَده وېښته دَ باتورانو په شان
۳۴ او نوکونه ئې دَ مرغانو په دود لوي شول ۳۴ او دَ هغو ورځو له تېريدلو
پس ما نبوکدنضر دَ آسمان په لوري خپلې سترګې پورته کړې عقل مې بيا
په ځاي شه او ما دَ حق تعالىٰ مبارکي وکړه او دَده حمد او ثنا مې وکړه
چه دې تر ابده پورې حي دې او دَده بادشاهت ابدي بادشاهت دې
او دَده مُلک پېړئ په پېړئ دې او دَ زمکې ټول اوسيدونکي ناڅيز ګڼلې
۳۵ کېږي ۳۵ او دې لکه چه غواړي هم هسي دَ آسمان دَ لښکرو او دَ زمکې

دَ اوسیدونکیو په منځ کښ کار کوي او هیڅوک نشته چه دَده لاس
منعَ کړي یا ده ته ووايي چه ته څه کوي ۳٦ هغه وقت ځما عقل ۳٦
په ما کښ بیرته راغي او ځما دَ بادشاهت دَ شوکت دَپارَ ځما عزّت او
رونق بیرته راغلل او ځما مشیرانو او امیرانو زه بیرته وغوښتلم
او زه په خپلي بادشاهيِ کښ بیا ودریدم او ځما لوئي او رونق بیحد
زیات شول ۳۷ اوس زه نبوکدنضر دَ آسمان دَ بادشاه شکرګذاري ۳۷
او ثنا او تعظیم کوم ځکه چه دَده ټول کارونه حق دي او دَده ټولي لاري
عدالت او دَي هغوي چه په مغروريِ چلیږي ذلیل کولي شي ٭

# پنځم باب

۱ آ بیلشضر بادشاه دَ یو زر امیرانو لویه میلمستیا وکړه او دَ هغو
۲ زرو دَ وړاندِ ئي شراب وڅښل ۲ بیلشضر چه دَ شرابو مزه واخستَ
حکم ئي وکړ چه دَ سرو او دَ سپینو زرو لوښي چه نبوکدنضر دَده
پلار دَ اورشلیم له هیکل نه راوړي وُو را دِ ئي وړي تاچه بادشاه
او دَده امیران او دَده ارتیني او دَده سوریتي په هغو کښ شراب
۳ وڅښي ۳ نو دَ سرو زرو لوښي چه دَ بیت الله له هیکل نه چه په
اورشلیم کښ وو راِ ئي وړل او بادشاه او دَده امیرانو او دَده ارتینو
۴ او دَده سوریتو په هغوي کښ وڅښل ۴ هغو شراب وڅښل او دَ
سرو او دَ سپینو زرو او دَ زیړو او دَ اوسپني او دَ لرګو او دَ کاڼو
۵ دَ معبودانو حمد ئي وکړ ۵ په هغه دم دَ چا سړي دَ لاس ګوتي ښکاره
شوي او هغوي دَ شمعدان په برابريِ دَ بادشاه دَ محل دَ دیوال
په ګچ باندِ ولیکل او بادشاه دَ هغه لاس حِصّه چه لیکل ئي کول
٦ ولیده ٦ نو دَ بادشاه څهره بدله شوه او دَده اندیښنو دي وترساوَه
او دَده دَ ملا بندونه سُست شول او دَده زنګنونه یو له بل سره
۷ ولګیدل ۷ بادشاه په لوي آواز سره ناره کړه وئي ویل چه سحرګر

او کِسدیان او نجومیان را حاضر کاندِيَ بادشاه دَ بابل حکیمانو ته دا
خبره وکړه چه هرڅوک چه هغه لیکلي ولولي او مطلب يې را ته
بیان کړي نو ارغواني خلعت به ور واغوندولي شي او دَ هغه په غاړې
۸ کښې به دَ سرو زرو زنځیر او هغه به په ملک کښې دریم مقرر شي ۸ نو
دَ بادشاه ټول حکیمان حاضر شول لیکن هغه لیکلي يې لوستلي
۹ نه شول او نه يې بادشاه دَ هغه په مطلب پوهولي شه ۹ نو بیلشضر
ډیر و ترسیده او څهره يې بدله شوه او دَده امیران حیران شول
۱۰ ۱۰ نو ملکه دَ بادشاه او دَده امیران دَ بادشاه او دَ امیرانو دَ خبري
په سبب دَ میلمستیا په کور کښې راغلله ملکي داسي خبره وکړه اي
بادشاه تر ابدَ ژوندي اوسي ستا اندیښني دِ تا و نه ترسوي او ستا
۱۱ څهره دِ تغیره نه شي ۱۱ ستا په ملک کښې یو سړی دی چه دَ پاکو
خدایانو روح په کښې دی او ستا دَ پلار په ورځو کښې په هغه کښې
نُور او دانائي او حکمت دَ خدایانو دَ حکمت په دود په ده کښې مونده
کیده چه هغه نبوکدنضر بادشاه ستا پلار اي بادشاه هم ستا پلار
دَ سحرګرو او دَ نجومیانو او دَ کسدیانو او دَ فال اچونکیو سردار
۱۲ کړي وه ۱۲ ځکه چه په هغه کښې یو دَ فضل روح او دانائي او عقل
او دَ خوبونو دَ تعبیر کولو او دَ رازونو دَ پرانتلو او دَ مشکلو دَ خلاصولو
قوت په هغه دانئیل کښې موندل شول چه په هغه بانډِ بادشاه
بیلطشضر نوم ګیښود نو اوس دانئیل دِ را وباله شي چه هغه به دَ
دغي معنیٰ تا ته دروښيي
۱۳ ۱۳ نو دانئیل دَ بادشاه حضور ته حاضر کړي شه بادشاه دانئیل
ته داسي خبره وکړه چه ته هغه دانئیل يي چه دَ یهوداه له بندیانو
۱۴ نه يي څه ؟ چه هغوي ځما پلار له یهوداه نه راوستل ۱۴ ما ستا شهرت
اوریدلي دي چه دَ خدایانو روح په تاکښې دي او نُور او عقل او
۱۵ زیرکي په تاکښې موندلي کیږي ۱۵ پس حکیمان او نجومیان ځما په حضور

حاضر کړي شول تا چه هغه لیکلي ولولي او دَ هغه په مطلب مې
١٦ پوه کړي لیکن دوي دَ هغه مطلب راته ظاهرولي نه شِي ١٦ او ما ستا
ذکر اوریدلی دَي چه ته معنیٰ ویلي شي او شبه لرې کوي نو که ته
هغه لیکلي ولولي او په مطلب مې ئي وپوهوي نو ارغواني خلعت به
درواغوندولي شِي او ستا په غاړې کښ به دَ سرو زنځیر ستا دَ ځان
١٧ دَپارَ او ته به په مُلک کښ دریم مقرر شي ١٧ نو دانئیل په ځواب
کښ دَ بادشاه په حضور وویل چه ستا انعام دِ هم ستا دَ ځان
دَپارَ وِي او خپل بخشش دِ بل چا ته ورکړه نو هم زه به دَ بادشاه
١٨ دا لیکل ولولم او په معنیٰ به ئي پوه کړم ١٨ ته اي بادشاه خداي
تعالیٰ نبوکدنضر ستا پلار ته بادشاهت او دبدبه او عزّت او لوئي
١٩ ورکړل ١٩ او دَ هغي دبدبي په سبب چه ده ته ئي ورکړه ټول قومونه
او امتونه او دَ ژبي ویونکي دَده په حضور په ترس او په لړزه کښ شول
چا ته چه به ئي رضا شوه هغه به ئي هلاک کول او چا ته چه به ئي رضا
شوه ژوندي به ئي پرېښود او چا ته چه به ئي رضا شوه سرفراز به ئي
٢٠ کړ او چا ته چه به ئي رضا شوه ذلیل به ئي کړ ٢٠ لیکن چه دَده زړه
پورته او روح ئي دَ کبرجنئ دَپارَ سخت شه نو دَ خپل بادشاهت له تخت
٢١ کوز کړي شه او دَده دبدبه ئي ورنه راونیوه ٢١ او دَ بني آدم له منځ نه
ئي وشاړه او دَده زړه دَ حیواناتو په شان جوړ شه او له کورخرو
سره ئي استوګنه وه او په ده ئي دَ غواګانو په دود واښه خوړل
او دَده صورت دَ آسمان له شبنم نه لُوند کیده تر دي حده چه
ده معلوم کړل چه حق تعالیٰ دَ انسان په مُلک بادشاهت کوي او
٢٢ هرچا لره چه ئي رضا وِي په هغه ئي ودروي ٢٢ او ته اي بیلشضر
چه دَ هغه ځوي یې سره له دي چه له دِ ټولو خبروي نو هم تا خپل
٢٣ زړه سره عاجزي ونه کړه ٢٣ بلکه دَ آسمانونو دَ خداوند په خلاف
دِ خپل ځان سربلند کړ او هغو دَده دَ کور لوښي ستا دَ وړاندې راوړل

او تا او سنا اميرانو او سنا ارتينو او سنا سوريتو په هغو کښې
شراب څښلي دِي او تا دَ سرو او دَ سپينو زرو او دَ زيړو او دَ
اوسپنې او دَ لرګي او دَ کاڼي معبودانو ته چه نه وينې او نه اورې
او نه پوهيږي حمد کړي دَي او دَ هغه خداي چه ستا دم ئې په لاس
۲۴ کښې دَي او چه ستا ټولي لارې دَده دِي نو تعظيم دِ ونه کړه ۲۴ نو دَ
هغه له لوري دَ هغه لاس حِصّه واستولې شوه او دا ليک چه
۲۵ وليکلې شه ۲۵ او هغه لِيک چه وليکلې شه دا دَي - منّا منّا تقيل او
فرسين - او دَ منّا دَ لفظ معنیٰ دا دَه چه الله ستا دَ بادشاهت حساب
وکړه او هغه ئې تمام کړه - دَ تقيل - معنیٰ دا دَه چه ته په تلي کښې
وتللې شوې او کم وختلې - دَ فرسين - معنیٰ دا دَه چه ستا بادشاهت
وويشلې شه او ماديانو او پارسيانو ته ورکړې شه ۲۹ نو بيلشضر
۲۹ حکم وکړه او هغوي دانئيل ته ارغواني پوشاک واغوندآوه او دَ سرو
زرو زنځير ئې دَده په غاړي کښې او دَده دَپاره جار وغړاوه شه چه
۳۰ دَي دِ په بادشاهت کښې دَ دريمې حاکم شي ۳۰ هم هغه شپه
۳۱ بيلشضر چه دَ کِسديانو بادشاه وه قتل کړې شه ۳۱ او دارا
مادي چه دَ دوشپيتو کالو وُه بادشاهت ئې واخست ✣

# شپږم باب

۱ آ دَ دارا خوښه شوه چه په مُلک باندِ يو سل شل حاکمان مقرّر
۲ کړي چه په ټولو مُلکونو حکومت وکړي ۲ او په هغو باندِ درې سرداران
چه دَ هغو اوّل دانئيل وه دي دَپاره چه حاکمان دوي ته حساب ورکوي
۳ او چه دَ بادشاه هيڅ نقصان ونه شي ۳ او دي دَپاره چه په دانئيل کښې
يو دَ فضل روح وه نو دَي له هغو حاکمانو او سردارانو نه غوره کړې
شه او دَ بادشاه اراده وشوه چه دَي په ټول بادشاهت باندِ مختار
۴ کړي ۴ نو هغو سردارانو او حاکمانو دا نيّت وکړه چه دَ حکومت په کار

کښ به دانئيل باندِ يو قصور ثابت کړِي ليکن هغوي هيڅ حيله او
هيڅ قصور مونديلي نه شه ځکه چه دئ آمين وه او په ده کښ هيڅ
خطا يا گناه مونديلي نه شوه ۵ نو هغي سړيو وويل چه دا دانئيل به ٥
دَده دَ خداي دَ شريعت نه بغير په بل هيڅ قصور کښ بيا نه مومو
۶ نو ټول سرداران او حاکمان دَ بادشاه دَ وړاندِ جمع شول او هغوي ٦
ده ته عرض وکړ چه اي دارا بادشاه تر ابدَ پوري ژوندي اوسي -
۷ ټولو سردارانو او حاکمانو او اميرانو او مشيرانو دَ ملک او افسرانو ٧
دَ لښکر مصلحت سره کړي دي چه بادشاهي قانون مقرر کړِي او يو ١
قوي حکم ورکړِي چه هرڅوک چه تر ديرشو ورځو پوري بغير له تانه
اي بادشاه له چا معبود. نه يا له سړِي نه درخواست وکړِي نو دَ ببرو
زمريو په ډوغل کښ دِ واچاوه شي ۸ اوس اي بادشاه دا حکم قايم کړه ٨
او په ليکلو دستخط وکړه تا چه بدل نه شي لکه چه دَ ماديانو او دَ
فارسيانو قانون چه نه بدل کيږِي ۹ نو دارا بادشاه په هغه نوشته او ٩
په هغه فرمان دستخط وکړ ۱۰ او چه دانئيل ته معلوم شول چه په ١٠
هغه نوشته دستخط وشه نو خپل کور ته ورغي او په خپلي کوټي
کښ (او دريچه ئي دَ اورشليم په لوري وازه وه) هره ورځ ئي دري
واره دَ الله په حضور خپل زنگنونه لګول لکه چه وړاندِ ئي کول او
شکر ئي کاوه ۱۱ پس دا خلق جمع شول او دانئيل ئي دَ الله په حضور ١١
دُعا کونکي او زارِي کونکي بيامونده ۱۲ پس هغوي نژدي ورغلل او دَ ١٢
بادشاه په حضور ئي دَ بادشاه دَ حکم ذکر وکړ چه اي بادشاه تا په
هغه فرمان باندِ دستخط ونه کړ څه؟ چه هر څوک چه تر ديرشو
ورځو پوري بي له تا نه بل معبود يا بل سړِي ته عرض وکړِي نو دَ
ببرو زمريو په ډوغل کښ به واچاوه شي بادشاه په ځواب کښ ورته
وويل چه دا خبره رښتيا ده دَ ماديانو او دَ فارسيانو دَ قانون په
موافق چه نه بدليږي ۱۳ نو هغوي ځواب ورکړ او دَ بادشاه په حضور ١٣

ئې وویل چه هغه دانئیل چه دَ یهوداه له جلاوطنو دَي تا نه منِي
او نه هغه حکم چه تا دستخط پرِ کړي دَي لیکن هره ورځ دري واره
۱۴ خپل سوالونه کوِي ۱۴ نو چه بادشاه دا خبري واوریدي نو په خپل
ځان کښ ډیر ناخوښه شه او په دانئیل ئې زړه وکړ چه خلاص ئې
کړِي او دَ نمر تر ډوبیدلو پوري ئې دَده په خلاصولو کښ کوشش کاوه
۱۵ ۱۵ بیا هغه سړِي دَ بادشاه په حضور جمع شول او بادشاه ته ئې وویل
چه اي بادشاه ته پوه شه چه دَ مادیانو او دَ فارسیانو قانون داسي
دَي چه هر هغه حکم او قانون چه بادشاه مقرّر کړِي نو نه بدل
۱۶ کیږِي ۱۶ پس له هغه بادشاه حکم ورکړ او دانئیل ئې راوست او دَ
ببرو زمریو په ډوغل کښ ئې واچاوه لیکن بادشاه دانئیل ته وفرمائیل
او وئې ویل چه ستا الله چه ته ئې مدام عبادت کوِي تا دِ خلاص
۱۷ کړِي ۱۷ او یو کاڼي راوړي شه او دَ ډوغل په خولې باندِ کیښودي شه
او بادشاه خپل او دَ خپلو امیرانو مُهر په هغه باندِ ولګاوه تا چه
۱۸ هغه قصد چه دَ دانئیل په حق مقرّر شه بدل نه شِي ۱۸ نو بادشاه
خپل محل ته لاړ او ټوله شپه ئې په روژه تیره کړه او دَ موسیقِي
ساز او سازونه ئې دَده دَ وړاندِ رانه وړل او دَده خوب ورنه لاړ شه
۱۹ ۱۹ او صباح ډیر وقتِي بادشاه پورته شه او په بیړه سره دَ ببرو زمریو
۲۰ و ډوغل ته ورغي ۲۰ او چه تر ډوغله ورسیده نو په غمجن آواز سره
ئې دانئیل ته ناري کړِي دانئیل ته بادشاه وفرمائیل او ورته وئې ویل
اي دانئیلَ دَ ژوندي خداي بنده ستا الله چه ته ئې مدام عبادت
۲۱ کوي قدرت لرِي څه؟ چه تا له ببرو زمریو خلاص کاندِ ۲۱ نو دانئیل
۲۲ بادشاه ته وویل اي بادشاه تر ابدَ ژوندي اوسي ۲۲ ځما خداي خپله
فرښته را استولي دَه او دَ ببرو زمریو خولي ئې بند کړي دِي تر دي
چه ما ته ئې ضرر را و نه رساوه ځکه چه دَده دَ وړاندِ په ما کښ
بې ګناهِي و موندلي شوه او ستا دَ وړاندِ اي بادشاه ما هیڅ نقصان

۲۳ کړي نه دي ۲۳ پس بادشاه ډېر ډېر خوشحاله شه او حکم ئې وکړ چه
دانئیل دِ له ډوغلَ را وخېژولي شي نو دانئیل له هغې ډوغله راویستلي
شه او په ده کښ هیڅ ضرر و نه مندلي شه دي دپارَ چه ده په خپل
۲۴ الله توکّل کړي وه ۲۴ او بادشاه حکم وکړ او هغوي هغه سړي چه په
دانئیل ئې شکایت کړي وه راوستل او دوي او دَ دوي هلکان او دَ دوي
ښځې ئې دَ ببرو زمریو په ډوغل کښ واچول او ببر زمري په هغوي
غالب شول او لا دَ ډوغل تر بېخه رسیدلي نه وُو چه ببرو زمریو ئې
۲۵ ټول هډونه رېزمرېز کړل ۲۵ نو دارا بادشاه ټولو قومونو او ټولیو او
ژبي ویونکو ته چه دَ زمکي په مخ بانْدِ اوسیدل ولیکل - ستاسي سلامتیا
۲۶ دِ زیاته شي - ۲۶ زه دا حکم کوم چه څما دَ بادشاهت دَ هري صوبي خلق
دِ دَ دانئیل دَ الله دَ وړاندِ په ترس او په لړزي کښ وي څکه چه هم
هغه حيّ الله دَي او مدام قیّوم دي او بادشاهت ئې بې‌زوالَ دَي
۲۷ او دَ ده بادشاهت به تر آخره وي ۲۷ هم هغه خلاصوي او نجات ورکوي
او په آسمان او په زمکي کښ هم نخښي او هم عجائب کارونه کوي چه
۲۸ ده دانئیل دَ ببرو زمریو له منگلو خلاص کړي دَي ۲۸ پس دا دانئیل دَ دارا
په سلطنت او دَ کورس فارسي په بادشاهت کښ کامیاب شه ❊

## اوم باب

۱ ۱ دَ بابل دَ بادشاه بیلشضر په وړنبي کال کښ دانئیل په خپلي بچاوړي
بانْدِ یو خوب او دَ خپل سر رویتونه ولیدل نو ده هغه خوب ولیکه او دَ
۲ هغه حال ئې په تفصیل سره بیان کړ ۲ دانئیل امر وکړ او و ئې ویل چه
ما دَ شپي په خپل خوب کښ ولیدل او څه گورم چه دَ آسمان څلور
۳ بادونه په لوي قعر دریاب بانْدِ زور وکړ ۳ او له قعر دریابَ څلور لوي
۴ لوي حیوانان چه یو له بل نه بیل وه را ووتل ۴ وړنبي دَ ببر زمري په
دود او دَ باڼُور وزر ئې لرل او ما لیده تر هغه پوري چه دَ هغه وزر

وويستلي شول او هغه له زمکي نه پورته کړي شه او دَ سړي غوندِ
٥ په پښو ودراوه شه او دَ سړي زړه ورکړ شه ۵ او څه گورم چه يو
بل حيوان دَ يږ په شان وه او هغه په يوه ډډه پورته کړي شه او دَ
هغه په خوله کښ دَ هغه دَ غاښونو په منځ کښ دري پښتئِ وي او
٦ هغوي دغه ته وويل چه پورته شه او ډيري غوښي ونغره ۶ پس له
هغه مِ نظر وکړ او څه گورم چه يو بل حيوان دَ پړانګ په څير
وُه چه په شا باندِ ئي دَ مرغه په دود څلور وزر وُو او دَ هغه
٧ حيوان څلور سرونه وُو او بادشاهت هغه ته ورکړي شه ۷ پس له
دي مِ دَ شپي په رويتونه کښ وليدل او څه گورم چه څلورم
حيوان هولناک او هيبتناک او بيحده زبردست او غاښونه ئي دَ
اوسپني وُو او لوي لوي وُو هغه به نغړدل کول او ټکري ټکري به
ئي کول او پاتي شوي به ئي بخپلو پښو پايمال کول او دغه له هغو
ټولو حيوانانو چه دَده دَ وړاندِ وُو بيل وه او لس ښکرونه ئي لرل
٨ ۸ ما په هغو ښکرونو په غور سره نظر وکړ او څه گورم چه دَ
هغو له منځ نه يو بل وړوکي ښکر راوخوت چه دَدغه دَ وړاندِ
ورنبي دري ښکرونه له بېخونو نه وکښل شول او څه گورم چه په
هغه ښکر کښ سترګي وي دَ انسان دَ سترګو په شان او يوه خوله
٩ وَه چه لوي لوي خبري ئي کولي ۹ ما تر دي حده وليدل چه تختونه
کښيښودي شول او واحد چه قديم الايّام وه کښيناست دَ هغه لباس
دَ واوري په دود سپين وه او دَ هغه دَ سر ويښتهٔ دَ صافي وړئَ
په دود دَ هغه تخت دَ اور دَ شغلي او دَ هغه څرخونه دَ بليدُنکي
١٠ اور وُو ۱۰ يو دَ اور سيلاب وبهيده چه دَ هغه له مخ ووت په
زرګونو دَ هغه خدمت کاوه او په لاکونو لاکونو دَ هغه دَ وړاندِ
١١ ولاړ وُو قيامت ودرولي شه او کتابونه وغوړيدلي شول ۱۱ ما وليدل
تر دي پوري چه دَ هغه دَ ښکر دَ آواز په سبب چه ډيري لوي

خبرې ئې کولې هو ما تړدي حده ولید چه هغه حیوان ووژه شه او
۱۲ بدن ئې هلاک کړې شه او دَ لمبې وهونکې اور بالن ته ورکړې شه ۱۲ او
دَ نورو حیوانانو په باب کښ دَ هغو بادشاهت ترِ واخست شه لیکن
۱۳ دَ هغو ژوند تر یوې مُدې او تر یوې زمانې پورې اوږد کړې شه ۱۳ ما
دَ شپې په رویتونو کښ ولیدل او ګوره چه یو تن دَ آدمزاد په دود
دَ آسمان له اوریځو سره راغې او تر قدیم الایّامَ پورې ورسیده هغوي
۱۴ هغه دَده دَ وړاندِ نژدې راوست ۱۴ او تسلّط او دبدبه او بادشاهت
هغه ته ورکړې شول تاچه ټول قومونه او اُمتونه او ژبې ویونکې دَده
خدمتګذارِي وکړِي دَده بادشاهت ابدِي بادشاهت دَي چه لاړ به نه شي
او دَده مملکت داسې چه زائل به نه شي
۱۵ ۱۵ زما دانئیل روح په ما کښ خپه شه او زما دَ سر رویتونو
۱۶ زه وترسولم ۱۶ زه له هغو نه چه نژدې راته ولاړ وُو یو تن ته ورغلم
او له هغوي نه مې دَ هغو ټولو خبرو دَ حقیقت پوښتنه وکړه هغه
۱۷ راته وویل او ټول حقیقت ئې را وښوو ۱۷ دا څلور لوي حیوانان څلور
۱۸ بادشاهان دِي چه له زمکې نه به پورته شي ۱۸ لیکن دَ حق تعالیٰ پاکان
به بادشاهت واخلِي او تر ابدَ بلکه تر ابدالآباد پورې به دَ هغه سلطنت
۱۹ مالکان وِي ۱۹ بیا مې نیّت وکړ چه دَ څلورم حیوان په حقیقت پوه شم
چه له هغو ټولو نه ګوښې وُه چه بې شانَ هیبت ناک وُه چه غاښونه
ئې دَ اوسپنې او نوکونَ ئې دَ زیړو وُو چه نغړدل به ئې کول او ټکړې
۲۰ ټکړې به ئې کول او پاتې شوې به ئې په خپلو پښو پایمال کول ۲۰ او
دَ لسو ښکرو چه دَ هغه په سر باندِ وُو او هغه بل چه ووت او
چه دَ هغه دَ وړاندِ درې پریوتل هو دَ هغه ښکر چه سترګې ئې وې
او یوه خوله چه لوي لوي خبرې ئې کولې اوچه دَ هغه نظر دَ هغه
۲۱ دَ ملګریو په نسبت زیات هیبت ناک وُه ۲۱ ما ولید چه
هم هغه ښکر له پاکانو سره جنګ کاوه او په هغو باندِ غالب شه

۲۲ تر هغه پورې چه قدیم الایّام راغي او دَ حق تعالیٰ پاکانو ته عدالت
ورکړې شه او وقت راورسیده چه پاکان خلق دَ بادشاهت نیونکي
۲۳ شول ۲۳ هغه داسې وویل چه څلورم بادشاهت دَي چه په زمکه کښ
به وِي هغه به له ټولو بادشاهتونو نه کوښې وِي او ټوله زمکه به
۲۴ ونغړي او پایماله به ئې کړِي او ټکړې ټکړې به ئې کړِي ۲۴ او هغه لَس
ښکرونه چه دِي لس بادشاهان دِي چه له هغه بادشاهت نه به پورته
شِي او پس له هغو به یو بل پورته شِي او دغه به له هغو وړاندنیو
۲۵ کوښې وِي او درې بادشاهان به کوز کړِي ۲۵ او هغه به دَ حق تعالیٰ په
مخالفت کښ خبرې وکړِي او دحق تعالیٰ پاکانو به ربړوي او د وقتونو او دشریعتونو
دبدلولو گمان به وکړِي اوهغه به ددِه په قبضه کښ ورکړې شي تر زمانې او تر زمانو
۲۶ او تر نیمي زمانې ۲۶ لیکن قیامت به کښینِي او هغوي به ددغه بادشاهت
۲۷ ورنه واخلِي چه هغه تر آخرَ پورې ونغړِي او نابود ئې کړِي ۲۷ او دَ ټول
آسمان دَ لاندِ دَ ټولو ملکونو بادشاهت او مملکت او دَ بادشاهت دبدبه
دحق تعالیٰ پاکانو ته به ورکړې شِي چه دهغه بادشاهت ابدِي بادشاهت دَي او
ټول بادشاهتونه به دَ هغه عبادت وکړِي او فرمان بردار به ئې شِي -
۲۸ ۲۸ هغه خبره تردې پورې تمامه شوه زه چه دانئیل یم څما اندیښنو زه بیخِه وترسولم
اوځما څهره په ما کښ بدله شوه لیکن ما داخبره پخپل زړه کښ وساتله*

# اتم باب

۱ ۱ دَ بیلشضر بادشاه دَ بادشاهیُ په دریم کال کښ هو ما دانئیل ته
یوه رؤیا ظاهره شوه پس له هغه چه په اوّل کښ ماته ظاهره شوې
۲ وَه ۲ او ما په رؤیا کښ ولیدل او هرکله چه ما ولیدل داسې مِې
ولیدل چه زه دَ شوشن په محل کښ وم چه دَ عیلام په وطن کښ
۳ دَي بیا مِې په رؤیا کښ ولیدل چه زه اولائي دریاب څنګه وم ۳ نو ما
خپلې سترګې پورته کړې نظر مِې وکړ او څه گورم چه دریاب څنګه یو

مېږ ولاړ دَی چه دوه ښکرونه ئي وُو او هغه دوه ښکرونه ئي اوچت
وُو ليکن يو له بل نه لوي وه او هغه لوي دَ بل نه ورستو پورته شه
۴ تهٔ ما هغه مېږ وليد چه دَ مغرب او دَ شمال او دَ سهيل په لوري
ئي ښکر وهل تر دي پوري چه هيڅ ځاندار ئي دَ وړاندِ ودريدلي نه شه
نه ئي دَ هغه له لاس نه خلاصولي شه مګر هغه چه څه غوښتل هغه
۵ ئي کول او خپل ځان ئي لوي کړهٔ او زه په دي فکر کښ وم چه ګوره
يو وِځ دَ مغرب له لوري راغي په ټول روي زمين داسي چه په زمکي
هم و نه بلوسيده او دَ هغه وِځ دَ دوو سترګو په منځ کښ يو عجب شان
۶ ښکر وُه ۶ او هغي دَ دوو ښکروړو وال مېږ ځځه چه ما هغه درباب ځځه
۷ ولاړ وليد راغي او دَ خپل زور له تندِي ئي په هغه ور دوکړهٔ ما
هغه وليد چه هغه مېږ ته نژدي ورغي او دَ هغه غضب ورباندِ زيات
شه او مېږ ئي وواهه او دَ هغه دواړه ښکرونه ئي مات کړل او دَ مېږ
توت نه وُه چه دَ هغه دَ وړاندِ ودريږي نو هغه ئي په زمکي وويشت
او پايمال ئي کړ او هيڅوک نه وه چه مېږ دَ هغه له لاس نه خلاص
۸ کاندِ ۸ او هغه وِځ بيحد لوي شه او چه هغه تکړه شه نو دَ هغه
لوي ښکر مات شه او دَ هغه په ځاي څلور عجيبه شان ښکرونه
۹ دَ آسمان دَ څلورو هواؤ په لوري ووتل ۹ او دَ هغو له يوه نه
يو وړوکي ښکر ووت او دَ سهيل او دَ مشرق او په زړه خوښونکي
۱۰ زمکي کښ بيحده لوي شه ۱۰ او هغه نور هم لوي شه دَ آسمان تر
لښکرَ پوري او له هغه لښکر نه او له ستوريو ئي ځني په زمکي
۱۱ پريستل او پايمال ئي کړل ۱۱ بلکه هغه دَ لښکر تر شاهزاده پوري
خپل ځان پورته کړ او له هغه نه ئي مدامي قرباني واخستله او
۱۲ مُقَدَّس مکان و نړاوه شه ۱۲ نو يو لښکر دَ مدامي قرباني په باب
کښ دَ خطا کولو په سبب ده ته حواله کړي شه او هغه رښتني په
۱۳ زمکه وغورزوله او دا ئي کول او کامياب کيده ۱۳ او ما دَ يوه

قُدسِي خبره چه ئي كوله واوريده او بل قُدسِي چه له هغه قُدسِي
سره ئي خبره كوله پوښتنه وكړه چه هغه رؤيا دَ مدامي قرباني په
بابت او دَ هغه ويجاړونكي دَ خطاؤ په بابت چه مَقدِس او لښكر
۱۴ دواړه وركړلي شول چه پايمال شي تر كومه به وِي ۱۴ هغه راته وُوِ
چه تر دوو زرو دري سوو صبا او بيگاه پوري به وِي بيا به
مَقدِس پاک صاف كړي شي
۱۵ ۱۵ او داسي وشول چه هرگاه چه ما دانيئل دا رؤيا وليده او
دَ هغي دَ تعبير تلاش مِ كاوه نو گوره څما دَ وړاندِ څوک ولاړ وُه
۱۶ چه صورت ئي دَ سړي غوندِ وُه ۱۶ او دَ يو سړي آواز واوريدي شه
چه دَ اولائيَ په مينځ كښ ئي په نارو سره وويل چه اي جبرائيلَ
۱۷ دا سړي ته په دي رؤيا پوه كړه ۱۷ نو هغه په هغه لوري چه زه ولاړ
وم نژدې راغي او چه راغيَ زه ووېريدم او پړمخ پريوتم ليكن هغه
۱۸ راته وُوِ چه اي آدمزاده پوه شه دا رؤيا دَ آخري زماني ده ۱۸ او چه
هغه ما ته ويل زه پړمخ په درانه خوب په زمكي پروت وم پس هغه
۱۹ لاس راباندِ كيښود او سم ئي ودرولم ۱۹ او وئي ويل چه گوره زه
به تا پوه كړم چه دَ قهر په آخر كښ به څه وشي څكه چه دا دَ
۲۰ آخر مقرّر وقت دپارَ دَه ۲۰ هغه مږ چه تا وليد چه هغه دوه ښكرونه
۲۱ لرل دَ ماده دَ فارس بادشاهان دِي ۲۱ او هغه وژغنوال وځ دَ
يونان بادشاه او هغه لوي ښكر چه دَ هغه دَ سترگو په مينځ كښ
۲۲ دَي دَ هغه ورنبيَ بادشاه دَي ۲۲ او چه هغه مات شول او دَ هغي
په ځاي كښ څلور نور ودريدل نو دغه څلور بادشاهان دِي چه
دَ هغه قوم په مينځ كښ به ودريږي ليكن دَ هغه دَ قوّت به شان
۲۳ به نه وِي ۲۳ او دَ هغو دَ سلطنت دَ زماني په آخر كښ به هغه
وقت چه خطاكاران خلق ترحده پوري ورسي نو يو ترش روي
۲۴ او دَ تاريكو رازونو پوهيدونكي بادشاه به پورته شي ۲۴ او دا به لوي

قوتناک وِي لیکن دَ هغه قوّت به دَ هغه خپل نه وِي او هغه به په
عجب شان سره قتل وکړِي او کامیاب به وِي او کار به وکړِي او زوراور
٢٥ او پاکان خلق به هلاک کړِي ٢٥ او له خپل انتظام نه به ټګي پوره کړِي او
په خپل زړه کښ به خپل ځان غټ ګڼړِي او په بي پروائِي به ډير فنا
کړِي هم هغه به دَ بادشاهانو دَ بادشاه په خلاف پورته ښِي لیکن
٢٦ بي دَ لاسَ به شکست وسومِي ٢٦ او دغه دَ صباح او دَ نماښام رؤیا چه
وویله شوه رښتیا دَه لیکن ته دا رؤیا بنده کړه ځکه چه دغي لره ډیري
٢٧ ورځي پاتي دِي ٢٧ او زه دانئیل بېخوده شوم او ترڅو ورځو پوري رنځور
وم پس له هغه پاڅیدم او دَ بادشاه په کارو بار لګیا شوم او له
دغي رؤیا نه حیران وم لیکن هیڅوک په هغي نه پوهیده ✣

# نهم باب

١ ١ دَ اخسویرس ځوي دارا په ورمبي کال کښ چه دَ مادیانو له نسلَ
٢ وَه او دَ کسدیانو په مُلک بادشاه مقرر شوي وُو ٢ دَ هغه دَ
بادشاهت په ورمبي کال کښ زه دانئیل په کتابونو کښ دَ هغو کالونو
په حساب و پوهیدم چه دَ هغو په باب دَ خداوند کلام یرمیاه
نبي ته رسیدلي وَه چه هغه به دَ اورشلیم په ویرانئِ کښ اویا کاله
٣ پوره کړِي ٣ او ما خپل مخ دَ خداوند الله په لوري کړ چه وئي لټوم
او په زارئِ او په دُعا کولو او په روژه لرلو او په ټټرئِ او په ایرو
٤ سره ٤ او ما له خداوند خپل الله نه دُعا وغوښته او ما اقرار وکړ
و مِ ویل چه اي خداوندَ ته چه عظیم او مُهیب الله یي او ته
عهد او رحمت ساتي دَ خپلو عاشقانو او دَ هغو سره چه ستا
٥ حکمونه ساتِي ٥ مونږ خطا کړِي دَه مونږ شرارت کړِي دَي مونږ باغي شوي
٦ یُو ستا له حکمونو او ستا له عدالتونو نه یوخوا کړِي شوِي یُو ٦ او مونږ
ستا دَ خدمتګذارو نبیانو آوریدونکي نه شولو چه هغوي ستا په نامه

خمونږ بادشاهانو او خمونږ شاهزادګانو او خمونږ پلرونو ته او دَ زمکي
۷ ټولو خلقو ته کلام واوراوه ۷ اي خداوندَ صداقت ستا دَي مګر
زردروئي خمونږ دَپارَ لکه چه نن ورځ دَه هو دَ یهوداه دَ خلقو
او دَ اورشلیم دَ اوسیدونکیو او دَ ټولو اسرائیلو دَپارَ چه نژدي او
چه لري دِي په هغو ټولو ملکونو کښ چه هلته کښ دَ هغو دَ ګناه په
۸ سبب چه ستا په خلاف سره ئي خطا کړي دَه هغوي دِ تیل وهل ۸ اي
خداوندَ زردروئي خمونږ دَپارَ دَه خمونږ دَ بادشاهانو خمونږ دَ شاهزادګانو
۹ خمونږ دَ پلرونو دَپارَ ځکه چه مونږ ستا په خلاف ګناه کړي دَه ۹ دَ
خداوند خمونږ دَ الله رحمتونه او معافئ شته دَي هرڅوکه مونږ
۱۰ له ده نه یاغیان شوي یُو ۱۰ مونږ هرګز دَ خداوند خپل الله دَ آواز
فرمان‌بردار شوي نه یُو چه دَده په حکمونو چه ده دَ خپلو خدمتګارو
۱۱ نبیانو په معرفت خمونږ دَ وړاندِ کیښودل لاړ نه شولو ۱۱ هو ټولو اسرائیلو
ستا دَ توریت نافرماني وکړه او ورنه ګرزیدلي دِي تاچه ستا آواز
وانه وري نو له دي سببَ هغه لعنت په مونږ راتوي شه او دَ هغه
قسم چه دَ الله دَ بنده دَ موسیٰ په توریت کښ لیکلي دَي دي دَپارَ
۱۲ چه مونږ دَده په خلاف ګناه کړي دَه ۱۲ او ده هغه خبري خپلي چه ده
خمونږ او خمونږ دَ قاضیانو چه په مونږ ئي قضا کوله په خلاف ویلي
ثابتي ئي کړي چه هغه په مونږ باندِ لوي آفت راولي ځکه چه دَ
درست آسمان دَ لاندِ داسي کار شوي نه دَي لکه چه په اورشلیم
۱۳ کښ کړي شوي دَي ۱۳ نو هغه ټولي بلا چه دَ موسیٰ په توریت کښ
لیکلي دِي په مونږ راغلي نو هم مونږ دَ خداوند خپل الله دَ وړاندِ
خپله دُعا ونه کړه تاچه مونږ له خپلو بدو کارونو نه وجاروزُو او
۱۴ ستا په رښتنئ کښ پوه شو ۱۴ دي دَپارَ خداوند مونږ ته په پسوني کښ
دَي چه بلا راولي او هغه ئي په مونږ نازلي هم کړي ځکه چه خداوند
خمونږ الله په ټولو کارونو خپلو کښ چه دَي ئي کوِي صادق دَي ولي

چه مونږ دَده دَ آواز فرمان‌بردار نشوي نه یُو ۱۵ او اوس اي خداوندَ ۱۵
خمونږ الله چه په زوراور بازُو سره دِ خپل خلق دَ مصر له زمکي
نه باهر رابستلي دَيَ او دَ خپل نخان دَپارَ دِ نُوم وړي دَيَ لکه چه
نن ورځ دَيَ مونږ گناه کړي دَه مونږ شرارت کړي دَيَ ۱۶ اي خداوندَ ۱۶
زه تاته زارِي کوم چه ته دَ خپل ټول صداقت په سوافق خپل قهر
اوخپله غصّه دَ خپل اورشليم ښهر او دَ خپل مُقَدّس غر نه
راستون کړه ځکه چه خمونږ دَ گُناهونو اوخمونږ دَ پلرونو دَ شرارتونو
په سبب اورشليم او ستا اُمّت دَ هغو ټولو په حضور چه ښا او
خوائي دَيَ يو پېغور شول ۱۷ اوس اي خمونږ الله دَ خپل بنده دُعا ۱۷
او زاريَ واوره او دَ خپلي څهري رڼا دَ خداوند په خاطر په خپل
مقدّس چه ويران دَيَ وبريښوه ۱۸ اي خما الله خپل غوږونه په دي لوريَ ۱۸
کړه او واوره اوخپلي سترگي پرانزه اوخمونږ ويرانيِ او هغه ښهر
ته چه ستا په نُوم باله شي وگوره چه مونږ ستا په حضور دَخپلي
راستبازيِ په وسيلي نه بلکه ستا دَ بيحدو رحمتونو له سببَ خپل
فريادونه پيش کوُو ۱۹ اي خداوندَ واوره اي خداوندَ معاف سو ۱۹
کړه اي خداوندَ واوره او عمل وکړه اي خما الله دَ خپل خاطر په
روي معطلي مه کوه دي دَپارَ چه ستا ښهر او ستا ټولي هم ستا په
نوم بللي شي

۲۰ او ما لا دا ويل او دُعا مِ کوله او دَ خپل نخان او دَ خپل ۲۰
قوم اسرائيل دَ گناهونو اقرار مِ کاوه او دَ خداوند خپل الله په
حضور دَ پاک غره دَپارَ مِ خپل مناجات کاوه ۲۱ هو په دُعا کولو ۲۱
کښِ لا تر اوسه پوري لگيا وم چه هم هغه کس يعني جبرائيل چه
هغه مِ په اوّل کښِ په رؤيا کښِ ليدلي وه را والوزاوه شه او
زه ئي دَ نماښام دَ قربانيِ تيرولو وقت ته نژدي مسه کړم ۲۲ او ۲۲
هغه زه وپوهولم او خبري ئي راسره وکړي او وئي ويل اي دانئيلَ

۲۳ زه اوس دي دَپارَ راوتلي يم چه په پوهي کښ دِ دانا کړم ۲۳ هغه دم
چه ته په دُعا کولو سر شوي دا حکم را ووت او زه راغلم چه تا ته يي
در وښيم ځکه چه ته ډير عزيز يي او دا خبره وِ پيژنه او په دي رؤيا
۲۴ پوه شه ۲۴ اويا هفتي ستا په خلقو او ستا په متقدّس ښهر مقرّري کړي
شوي دِي دَ تقصيرونو دَ ختمولو او دَ خطاکارِي ختمولو او دَ بدکارِيُ
دَ کفارِي کولو ابدِي صداقت دَ پيښولو او دَ رؤيا او دَ نبوّت دَ مُهر
۲۵ لګولو او دَ قُدّوسُ الاَقْدَس دَ مسح کولو دَپارَ ۲۵ نو ته خبر شه او
پوه شه چه هرکله چه دَ اورشليمِ دَ آباد کيدلو او دَ جوړولو حکم
وشي تر مسيح شاهزاده پوري اوه هفتي دِي او دوشپيته هفتي هغه
وقت به بازار بيا آباد کړي شي له کوڅو او له خندق سره مګر دَ تنګيُ
۲۶ په ورځو کښ ۲۶ او پس له دوشپيتو هفتو نه به مسيح قتل کړي شي
نه دَ ځان دَپارَ او دَ هغه شاهزاده خلق چه راځي نو دَ هغه ښهر
او متقدّس به برباد کاندِ او دَ هغه آخر به دَ طوفان سره وِي او
۲۷ تر آخره پوري به جنګ وِي او مقرّري شوي خرابيُ به وِي ۲۷ او دي به
هغه وعده له ډيرو سره دَ يوي هفتي دَپارَ قايمه کړِي او دَ هفتي
په منځ کښ به ذبيحه او نذرانه موقوفه کړِي او دَ نجسو په وزريو
خرابونکي به راشِي تر دي حد پوري چه هغه بالکل پوره شِي او هغه
بلا چه مقرّره کړي شوي دَه په هغه ويرانونکي به پريوزِي +

## لسم باب

۱ آ دَ فارس دَ بادشاه دَ کورس په دريم کال کښ په دانيل باندِ
چه نُوم يي بيلطشضرّ کيښود شه يوه خبره ظاهره شوه او هغه
خبره رښتيا وه ليکن لوي جنګ وه او هغه په هغي باندِ و پوهيده
۲ او په هغي رؤيا پوه شه ۲ ما دانيل په هغو ورځو کښ تر دريو هفتو
۳ پوري غم کاوه ۳ ما په خوښيُ سره ډوډيُ وِ نه خوره او خما خولي ته نه

غوښې نه شراب راغلل او ما ځان غوړ نه کړ تر هسې حده چه
دري هفتي پوره تيري شوي ۳ او دَ ورځې مياشتي په څلورويشتم ۴
تاريخ زه دَ لوي درياب دَ دجلې په غاړې وم ۵ او ما سترګې پورته کړې ۵
نظر مې وکړ او څه ګورم چه يو سړی چه کتاني جامې ئې آغوستي وې
او چه په ملا ئې دَ اوفاز دَ سوچه سرو زرو بند تړلي وه ۶ دَ هغه بدن ۶
دَ زبرجد په دود او مخ ئې دَ بريښنا په شان وُه او دَ هغه سترګي
دَ اور دَ چراغونو په شان وي دَ هغه بازو او دَ هغه پښې په رنګ
کښې دَ صيقل کړيو زيړو په دود وي او دَ هغه دَ خبرو آواز دَ ګڼو
خلقو دَ آواز په شان وه ۷ ما دانئيل يواځي دا رؤيا وليده او هغو ۷
کسانو چه له ما سره وُو رؤيا و نه ليده ليکن په هغو داسې لرزه
راغله چه پټ‌پله دَ خپلو ځانونه دَ پټولو دَ پاره وتښتيدل ۸ نو زه يواځي ۸
پاتي شوم او چه ما دا لويه رؤيا وليده په ما کښې طاقت پاتي نه شه
ځکه چه ځما ښائست په ما کښې زيړوالي ته وګرزيده او طاقت مې لاړ
شه ۹ ليکن ما دَ هغه دَ خبرو آواز واوريده او زه دَ هغه آواز او ۹
دَ خبرو آوريدو په وقت پړمخ په درانه خوب ووده وم او مخ مې دَ زمکي
په لوري وه ۱۰ او ګوره يوه لاس مسه کړم او زه ئې په زنګنونو او دَ ۱۰
لاس په ورغويو کښېنولم ۱۱ او هغه راته ووئيل اې دانئيله عزيزه ۱۱
سړه هغه خبرې چه زه ئې تاته کوم پرې پوه شه او سم ودرېږه ځکه
چه زه تاته اوس استولي شوي يم او هغه چه دا خبره راته وکړه نو
په رپيدلو سره ودريدم ۱۲ نو هغه راته ووې اې دانئيله مه ويريږه ۱۲
چه له ورځې ورځي نه چه تا خپل زړه ولګاوه چه وپوهيږې او دَ
خپل خداې دَ وړاندې عاجزي وکړې ستا خبرې واوريدلې شوې او زه
ستا دَ خبرو په سبب راغلي يم ۱۳ ليکن دَ فارس دَ ملک شاهزاده ۱۳
ځما په مقابلې کښې تر يوويشتو ورځو پوري ودريده او ګوره ميکائيل
چه په لويو شاهزادګانو کښې يو دی ځما کومک ته را ورسيده نو زه

۱۴ هلته کښې دَ فارس دَ بادشاهانو سره ډېره شوم ۱۴ اوس زه راغلی یم
چه هرڅه چه ستا په خلقو به په وروستو ورځو کښې پیښ شي تا ته
۱۵ به ئې در وښیم ځکه چه دَدې رؤیا دپارَ ډیرې ورځې پاتې دِي ۱۵ او هغه
چه دا خبرې ئې ما ته وکړې نو ما مخ زمکې ته ټیټ کړ او ګونګ شولم
۱۶ ۱۶ او ګوره یوچه دَ بنيآدم په شان وه ځما شونډې ئې مسه کړې نو
ما خپله خوله پرانستله او هغه ته چه ځما په مخ کښې ولاړ وه وم ویل
اې خداوندَ دَ هغې رؤیا په سبب ځما غمونو په ما باندِ غلبه کړې ده
۱۷ او په ما کښې هیڅ قوّت پاتې نه شه ۱۷ او دا څرنګ امکان لرِي چه ځما
دَ داسې خاوند بنده ځما له داسې خاوند سره خبرې وکړِي زه چه یم په
ما کښې به بیا هیڅ قوّت پاتې نه شه او نه په ما کښې دَم پاتې
۱۸ دَی ۱۸ نو بیا راغې یو بل چه صورت ئې دَ آدمي په شان وه زه ئې مسه
۱۹ کړم او زور ئې راوباخښه ۱۹ او هغه وویل چه اې ډېره عزیزه مَرده
مه ویریږه ستا سلامتي دِ وي زور ونیسه هو توانا شه اوچه هغه
دا راته وویل نو قوّت مې وموند او وم ویل اې ځما خداوندَ اوس دِ فرما
۲۰ چه هم تا قوّت راباخښلی دَی ۲۰ نو هغه وویل چه ګنړه ته پوهېږې چه
زه تا ته څه دپارَ راغلی یم او اوس به زه دَ فارس دَ سردار جنګیدلو
ته بیرته ورشم او چه زه لاړ شم نو ګوره دَ یونان شاهزاده به راشي
۲۱ ۲۱ لیکن زه به ئې در وښیم هر هغه څه چه دَ رښتیني په کتاب کښې
لیکلي دِي او هیڅوک نشته چه دَ دغو په مقابلې کښې ځما دَ کومک کولو
دَپارَ ملا وتړِي مګر میکائیل چه ستاسې شاهزاده دَی ✢

# یوولسم باب

۱ ۱ او دَ دارا ماد‌ي په اوّل کال کښې زه وم چه ودریدم تا چه هغه
مضبوط کړم او قوّت ورکړم
۲ ۲ او زه هغه اوس تا ته چه رښتیا دِي در وښیم ګوره په فارس

کښې به نور هم درې بادشاهان پورته شي او څلورم به له ټولو زیات
دولتمند وي او هرکله چه هغه د خپل دولت په سبب زورآور شي
۳ نو دی به ټول خلق ولمسوي چه د یونان د بادشاهت مخالف شي ۳ لیکن
یو زبردست بادشاه به پورته شي او په ډیرې دبدبې سره به بادشاهي
۴ کوي او چه غواړي هغه به وکړي ۴ او چه هغه پورته شي نو د هغه
بادشاهت به مات شي او د آسمان د څلورو هواؤ په اطرافو به تقسیم
کړې شي او نه به د ده اولاد ته ورشي او نه به د ده د بادشاهت کولو
سره موافق وي ځکه چه د ده بادشاهت به له بېخه وکیښلې شي او هغه
۵ به د هغو نورو د پاره وي ۵ او د جنوب بادشاه به زور ونیسي او یو به
د هغو له شاهزادګانو په زور کښې له هغو زیات وي او بادشاهت به
۶ واخلي او د هغه بادشاهت به لوی وي ۶ او پس له څو کالونو به آخر
هغوي یځپل منځ کښې سره جوړ شي ځکه چه د جنوب د بادشاه لور به
د شمال بادشاه ته راشي تا چه یکانګي ئي وشي لیکن هغه به د
خپل وزر قوت قایم نه کړي او نه به هغه ودریږي او نه به د
هغه وزر بلکه دا به له هغو سره چه د هغې راوړونکي وُو او هغه
چه وئې زیږوله او له هغه سره چه په هغو ورځو کښې ئې زوراوره
۷ کړې وه وسپارلې شي ۷ لیکن یو به د هغې له نسل د نهالګي په دود
چه له بېخ ووزي د هغه په ځای ودریږي هغه به لښکر ته راشي
او د شمال د بادشاه په قلاکښې به ننوزي او په هغو به حمله وکړي
۸ او غالب به شي ۸ او دې به د هغو د معبودانو او د هغو د ویلې
شویو بتانو سره په بند مصر ته بوزي او د هغو قیمتي لوښي به د
سرو سپینو زرو هم یوسي او دې به د قطب د بادشاه په نسبت سره
۹ تر ډیرو کالو پورې قایم شي ۹ بیا به دې د جنوب د بادشاه په مُلک
۱۰ کښې ننوزي لیکن خپلې زمکې ته به بیا لاړ شي ۱۰ او د هغه اولاد
به جنګ ته ولمسیږي او ډیر لوي لښکر به جمع کړي او را به شي حمله

به وکړِي او نير به شِي او بيا به راشِي او هغوي به دَ دي تر قلا پورې
۱۱ ورسره وجنګيږِي ۱۱ او دَ جنوب دَ بادشاه غضب به زيات شِي او هغه
به ورووزِي دَ شمال له بادشاه سره به جنګ وکړِي او له لوي لښکر
سره به ودرِوي او هغه لوي لښکر به دَ هغه په لاس کښ ورکړي
۱۲ شِي ۱۲ او چه هغه لښکر پورته کړي شِي نو دَ هغه په زړه کښ
به کبر پيدا شِي او هغه به په لکونو پرېباسِي ليکن هغه به پرِ
۱۳ غالب نه شِي ۱۳ او دَ شمال بادشاه به وګرزِي او يو لښکر چه له
اول نه به زيات وِي ودرِوي او دَ کالونو دَ زمانو په آخر کښ به
۱۴ هغه له لوي لښکر او له ډير مال سره راشِي ۱۴ او په هغو ورځو
کښ به ډير خلق دَ جنوب دَ بادشاه په خلاف ودرېږِي او ستا دَ
قوم غلونه به هم پورته شِي چه هغه رؤيا پوره کړِي ليکن هغوي
۱۵ به وپرزِي ۱۵ نو دَ شمال بادشاه به راشِي او مورچه به وتړِي او
مضبوط ښهر به واخلِي او دَ جنوب دَ بادشاه بازو به قايم پاتي
نه شِي او دَ هغه غورو غورو خلقو ته به دَ ټينګيدلو طاقت پاتي
۱۶ نه شِي ۱۶ او هغه څوک چه په ده بانډِ خيژِي دَ خپلي مرضۍ په موافق
به کار وکړِي او هيڅوک به دَ هغه مقابله کولي نه شِي او په هغي
بزرګي زمکي کښ به ودرېږِي او دَ هغه په لاس کښ به تباهِي وِي
۱۷ ۱۷ او هغه به خپل مخ ټينګ کړِي تاچه دَ خپل ټول بادشاهت له
زور نه په کښ ننوزِي او دَ رښتِني قوم خلق به ورسره شِي هغه
به هم داسي عمل وکړِي او دي به هغه ته دَ ښځي لور ورکړِي تاچه
خرابه ئي کړِي ليکن نه به هغه قايم شِي او نه به دَ هغه په لورِي
۱۸ شِي ۱۸ پس له هغه به هغه خپل مخ دَ جزيرو په لورِي کړِي او ډيري
جزيري به واخلِي ليکن يو شاهزاده به هغي ملامتيا لره چه هغه
دَده له لورِي اخستي وه موقوفه کړِي بلکه بغير دَ هغه به هغه ملامتيا
۱۹ په ده بيرته ور وګرزوِي ۱۹ نو به دَي خپل مخ دَ خپل وطن دَ قلاؤ په

طرف وګرزوي مګر تيندک به وخوري او وبه پرزي او بيا به موندہ
نه شي ٢٠ او دَ هغه په ځاي به يو بل پورته شي چه هغه به دَ ٢٠
بنائسته مُلک په منځ کښ محصول آخستونکي شي ليکن په لږو ورځو
کښ به هلاک شي نه په غضب او نه په جنګ ٢١ بيا به دَ هغه په ٢١
ځاي يو زبون و دريږي چه دغه لره به هغوي دَ بادشاهت عزّت
ور نه کړي ليکن هغه به دَ بي پروائي په وقت کښ راشي او په خوشامد
سره به مُلک واخلي ٢٢ او هغه لښکر چه دَ سيلاب په دود راشي هغوي ٢٢
به دَ هغه له مخ نه په بل لوري و بهيږي او مات به شي او هم شاهزادہ
دَ وعدي ٢٣ او هرکله چه له هغه سره قول او اقرار وشي نو به په ټګي ٢٣
سره کار وکړي ځکه چه دي به وخيژي او دَ لږو خلقو سره به لوي شي
٢٤ او هغه به دَ بي پروائي په وقت دَ مُلک په څربو ننوزي او هغه به ٢٤
داسي څه وکړي چه نه دَ هغه پلرونو نه دَ هغه نيکونو او نيکونو کړي
وُو هغه به شوکه او لوټ او مال په هغوي وويشي او ترڅو مُدي
پوري به دَ محکمو قلاګانو په نيولو خپلي انديښني کوي ٢٥ او هغه به خپل ٢٥
زور او خپله دلاوري ولمسوي چه له لوي لښکر سره به دَ جنوب په بادشا
باندي او دَ جنوب بادشاه به له لوي او له بيحده زوراوره لښکره سره
جنګ کولو ته وروزي مګر هغه به قايم نه شي ځکه چه هغوي به
دَ هغه په مخالفت کښ چلونه وکړي ٢٦ هو هغوي چه دَ هغه له خوراکه ٢٦
نه خوري هم هغه به يې خراب کړي او دَ هغه لښکر به دَ سيلاب
په دود وخيژي او ډير به مړه پريوزي ٢٧ او دَ هغو دواړو بادشاهانو ٢٧
زړونه به په بدکارئ مشغول شي او هغوي به په يوه خوانچه يو له
بله سره دروغ وائي ليکن کاميابي به يې نه وي ځکه چه په مقرّر
وقت به ختم شي ٢٨ نو به هغه له لوي دولت سره خپلي زمکي ته ٢٨
را وګرزي او دَ هغه زړه به دَ مقدّس عهد په خلاف وي او هغه
به کار وکړي او خپلي زمکي ته به بيرته را وګرزي ٢٩ او په مقرّر ٢٩

وقت به هغه بیا راشي دَ سُهيل په لورِي به ووزي لیکن نه به
٣٠ ورستني دَ ورانديني په څير وي ٣٠ چه دَ کتيم جهازونه به مقابله
ورسره وکړي نو هغه به خپه شي او و به ګرزي او په پاک عهد
به ئي غضب زيات شي او هغه به عمل وکړي او له هغو خلقو سره به
٣١ چه ځما عهد ئي ترک کړي دي اتّفاق وکړي ٣١ او فوځونه به ورسره
ګډ شي او هغوي به محکم مقدّس ناپاک کړي او مدامي سيځونکي قرباني
٣٢ به موقوفه کړي او خراب کونکي نجس به په هغي کښ کيږدي: او دي به
هغوي چه دَ عهد په مقابل دَ خباثت کار کوي په خوشامدو سره
وغولوي ليکن هغه خلق چه خپل خداي پيژني مضبوط به شي او کار
٣٣ به وکړي ٣٣ او هغوي چه دَ قوم په منځ کښ پوهه ناک دي ډيرو
ته به تعليم وکړي ليکن دوي به په توري او په اور او په بند او په
٣٤ لوټ کيدلو تر ډيرو ورځو پوري پريوزي ٣٤ او هرکله چه دوي پريوزي
نو دوي به له لږ څه کومک نه مدد موي ليکن په ډيري خوشامدي
٣٥ به ورسره ګډ شي ٣٥ او ځني پوهيدونکي به پريوزي تاچه دَ هغوي
ازمائښت وشي او هغوي به صاف او سپين شي تر هغه پوري
٣٦ چه وقت پرِ آخر راشي ځکه چه دا دَ مقرّر وقت دَپاره دي ٣٦ او بادشاه به دَ خپلي
مرضئ په موافق کار وکړي او ځان به لوي کړي او دَ خدايانو دَ خداي
په مقابلي کښ به ډيري حيراني زياتونکي خبري وکړي او کامياب به شي
تر هغه چه دَ قهر ورځي پوره شي ځکه هغه څه چه مقرّر شوي دي
٣٧ پوره به شي ٣٧ او هغه به دَ خپلو پلرونو دَ خداي په لوري پروا
و نه کړي او نه به دَ ښځو رغبت کوي او نه به هيڅ خداي مني بلکه
٣٨ خپل ځان به له ټولو پاس ګنړي ٣٨ مګر دَ هغه په ځاي به دَ کوټو
دَ معبود تعظيم او دَ هغه معبود چه دَده پلرونو نه پيژاند به
سپينو زرو او په سرو زرو په قيمتي کاڼيو او په ښائسته پيشکشو
٣٩ سره به ئي تعظيم کوي ٣٩ هغه به په محکمو حصارونو کښ له بيګانه

معبود سره داسي کار وکړي هرڅوک چه ئي قبول کړي نو بي‌شانه عزتمند
به ئي کړي او هغه به دَ ډېرو سردار کړي اودَ قیمت دَپارَ به زمکه وویشي
۴۰ ۳۹ اودَ آخر په وقت کښِ به دَ جنوب بادشاه په هغه باندِ جنګ وکړي
اودَ قطب بادشاه به له ګاډیو او له سوارو او له ډېرو جهازونو سره
دَ برپوکۍ په دود پرِ وخیژي او په هغو ملکونو کښِ به ننوزي اوو به ئي
۴۱ بهوِي اوتېر به شي ۴۱ او په بنائسته زمکي به هم ننوزي او ډېر به
پرېوزي مګر اَدوم او موآب اوخاص خلق دَ بني‌عمون به دَ هغه له
۴۲ لاس نه خلاص شي ۴۲ او هغه به خپل لاس په ملکونو باندِ اوږد کړي
اودَ مصر ملک به هم ورنه خلاص نه شي لیکن هغه به دَ سرو
او سپینو زرو په خزانو اودَ مصر په ټولو قیمتي څیزونو قابض شي
۴۴ او لوبي او کوشي به دَ هغه پېروي وکړي ۴۴ لیکن دَ مشرق اودَ قطب
له اطرافو به خبري ورته را و رسیږي دي دَپارَ به په لوي غضب سره
۴۵ بهرووزي تا چه تباهي وکړي او ډېرو لره فوفنا کړي ۴۵ او په هغه
رونق‌دار مقدس غره باندِ به خپل بارګاه دَدریابونو په منځ کښِ
ودروِي لیکن هغه به په خپل اجل و رسیږي او هیڅوک به
دَ هغه مددګار نه وِي ❊

# دولسم باب

۱ ۱ او هغه وقت به میکاایل هغه لوي شاهزاده چه ستا دَ اُمت دَ
ځامنو دَپارَ ولاړ دي پورته به شي او دَ داسي عذاب وقت به وِي چه
دَ اُمت له ابتدا نه تر هغه وقتَ پوري هیڅري پیښ شوي نه وُه او
هغه وقت به ستا له خلقو نه هر یو چه نوم ئي په کتاب کښِ لیکلي
۲ شوي وِي خلاصون بیامومي ۲ او له هغوي نه به ډېر چه په زمکه باندِ
په خاورو کښِ اوده دِي وېښ به پورته شي څني دَ مدامي ژوندانه دَپارَ
۳ اوځني دَ ابدِي رسوائي او بي‌عزتۍ دَپارَ ۳ لیکن دانایان به دَ آسمان

دَ برېښنا په دود ځلېږي او هغوي چه نور خلق صداقت ته ګرزوي تر
۴ ابدالآباده به دَ ستوريو په شان روښان وِي ۴ ليکن ته اي دانئيلَ
دا خبري بندې کړه او دَ آخر تر وقتَ پوري په کتاب مُهر ولګوه ډېر خلق
به دې خوا هغې خوا ته زغلِي او علم به زيات شِي
۵ ۵ او ما دانئيلَ نظر وکړ او ځه ګورم چه دوه تنه نور ولاړ دِي يو
دَ درياب دَ غاړي په دې لورِي او بل دَ درياب دَ غاړي په هغه لورِي-
۶ ۶ او يو سړي له هغه سړِي نه چه کتانِي جامي ئې آغوستي وي او دَ
درياب په اوبو باندِ ولاړ وه پوښتنه وکړه چه دا عجائب څيزونه به پس
۷ له څو مُدې نه تمام شِي ۷ او ما واوريدل چه هغه سړِي چه کتانِي
پوشاک ئې آغوستي وه او دَ درياب په اوبو باندِ وه خپل ښي او خپل
کِينْ لاس ئې دَ آسمان په لورِي پورته کړل په هغه ئې چه مدام ژوندي
دَي قسم وخوړ او وئې ويل چه تر يوي زمانِي او تر زمانو او تر نيمي
زمانِي پوري به وشِي او چه هغه دَ پاکو خلقو دَ زور له تار په تار کولو
۸ نه وزګار شِي نو دا ټول څيزونه به پوره شِي ۸ او ما خو واوريدل ليکن
پرِ پوه نه شوم نو ما وويل چه اي زما خداوندَ دَ دغو څيزونو آخر به
۹ څه وِي ۹ هغه راته وويل اي دانئيلَ ته ځپلِي لاري باندِ ځه چه دا
۱۰ خبري تر آخره وقتَ پوري بندي او په مُهر کړي دِي ۱۰ او ډېر خلق به پاک
او سپين او وآزمايلي شِي ليکن شريران به شرارت کوِي او له شريرانو
۱۱ نه به هيڅوک پوه نه شِي مګر دانايان به وپوهيږي ۱۱ او له هغه وقت نه
چه دائمي قربانِي موقوفه کړي شِي او هغه نجس څيز چه خرابِي کوِي
۱۲ ودرولي شِي يو زر دوه سوه نوي ورځي به وِي ۱۲ مبارک هغه دِي چه
انتظار کوِي او تر يو زر دري سوه پنځه ديرشو ورځو پوري ورسي -
۱۳ ۱۳ ليکن ته په خپلِي لاري ځه تر هغه پوري چه آخر شِي چه ته به
په قرار شي او په خپلِي برخي به دَ آخر په ورځو کښي ودريږي *

پښتو شوي له اصلي عبراني ژبي نه په قلم د غلام جلاني لکلي

נביאים

# كلام الله

## نبوت

## نبيان كشران

په سعي برتش اينډ فارن
بيبل سوسيټي لندن او پيښور

# MINOR PROPHETS, IN PASHTU.

BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON

1895.

# دَ هوشع نبي کتاب

## اول باب

۱ ۱ هغه کلام دَ خداوند چه دَ بيرِي زوي هوشع ته دَ يهوداه دَ
بادشاهانو عزياه او يوتام او آخز او حزقياه په ورځو کښ او دَ
اسرائيل دَ بادشاه يربعام زوي دَ يوآش په ورځو کښ ورسيده
۲ ۲ دَ خداوند دَ کلام شروع چه دَ هوشع په وسيلي راغي خداوند هوشع
ته وفرمايل چه لاړ شه. يوه زناکاره ښځه او دَ زنا زيږيدلي دَ خپل
ځان دَپارَ واخله ځکه چه مُلک خداوند پريښود لويه زنا ئي کړي دَه -
۳ ۳ نو دي لاړ شه او دَ بلائم لور جومره ئي واخسته او حامله شوه او
۴ زوي ئي وزيږاوه ۴ او خداوند ور ته وويل چه دَ دغه نوم يزراعيل کيږدْ
دي دَپارَ چه لږ مُده پاتي ده او زه به دَ ياهو له ټبر نه دَ يزراعيل
دَ خون بدل واخلم او دَ اسرائيل دَ ټبر بادشاهت به تمام کړم -
۵ ۵ او هغه ورځ به داسي وشِي چه زه به دَ يزراعيل په خوړي کښ
۶ دَ اسرائيل لينده ماته کړم ۶ او هغه بيا بارداره شوه او يوه لور
ئي وزيږاوله او ورته وئي فرمايل چه دَ هغي نوم لورحامه کيږده ځکه
چه زه به دَ اسرائيل په ټبر بيا رحم ونه کړم چه په معافِي معاف
۷ ئي کړم ۷ ليکن دَ يهوداه په کورمه به رحم وکړم او هغوي ته به دَ
خداوند دَ هغو دَ الله په وسيلي خلاصون ورکړم او دَ لينده او دَ
تورو او دَ جنګ او دَ آسونو او دَ سوارو په زورَ به خلاصون ورنه
۸ کړم ۸ او چه لورحامه ئي له تِي پريکړه نو هغه بيا بارداره شوه او يو
۹ زوی ئي وزيږاوه ۹ او ده ور ته وفرمايل چه دَدغه نوم لوعمي کيږده
ځکه چه تاسو ځما خلق نه يئِ او زه به ستاسو نه شم
۱۰ ۱۰ نو هم بنِي اسرائيل به په شمار کښ دَ درياب دَ شګو په شان

وِي چه نه پیوندلي شِي او نه گنړلي شِي او داسي به پيښ شِي چه
هغه ځاي چه هلته دوي ته ويلي شوي وُه چه تاسي څما خلق نه يئ
دَ دغه په عوض كښ به هغه ته ويل شِي چه تاسي دَ ژوندِي الله
۱۱ زامن يئ ۱۱ او بني يهوداه او بني اسرائيل به سره كه شِي او دَ خپل
ځان دَپارَ به يو سردار مقرّر كړي او له هغي زمكي به را وخيژي چه
دَ يزراعيل ورځ به لويه وِي ٭

## دويم باب

۱ ۱ خپلو ورڼو ته عمي وايي او خپلو خويندو ته رُحامه
۲ ۲ تاسي له خپلي مور سره بحث وكړئ ځكه چه هغه څما
ارنينه نه ده او زه دَ هغي ميړه نه يم دي دَپارَ چه دا دِ خپل حرام
كارونه دَ خپلو سترګو له مخي لري كړي او خپلي زناوي دِ دَ خپلو تيو
۳ له منځ نه ۳ هسي نه وِي چه زه هغه برمنده كړم او داسي ئي
ودروم لكه چه دا دَ خپلو پيدا كيدلو په ورځ كښ وَه او هغه به دَ
بيابان په دود كړم او دَ وچي زمكي په شان به ئي كړم او په تنده به
۴ ئي ووژنم ۴ او دَ هغه په اولاد به رحم ونه كړم ځكه چه دوي
۵ حرام زاده دِي ۵ ځكه چه دَ دوي مور كنجني توب كړي دَي ځكه چه
كيدي كښ ئي ونيول دَ رسوائِي كار ئي كړي دَي ځكه چه دي ويلي دي
چه زه به په خپلو مينو پسي چه ما ته څما ډوډئِ او څما اوبه او څما
۶ وړئ او څما سڼه او څما تيل او څما څښاك راكوِي لاړه شم ۶ كوره
په دي سبب به زه ستا لار په اغزيو بنده كړم او ديوال به هم
۷ پورته كړم چه هغه خپله لار نه مومي ۷ او دَ خپلو مينو په وروستو
پسي به لاړه شِي ليكن دَ هغو په برابر به نه ور و رسيږي او هغوي
به ولټوي ليكن نه به ئي مومي نو دا به ووائي چه زه به خپل ورنبي
ميړه ته بيرته ورشم ځكه چه څما هغه حال له دي اوسني به ښه
۸ وُه ۸ ځكه چه دا نه وپوهيده چه هم ما دي ته غلّه او نوِي شراب او

تیل ورکړل او دَ شني سره او سپین زر چه په هغو دوي دَ بعل
۹ بتان جوړ کړي دِي زیات مِ کړل ۹ دي دپارَ به زه بیا وګرزم او خپله
غلّه به دَ هغي دَ فصل په وقت او خپل شراب به دَ هغو په موسم
کښ ورنه واخلم او خپلي وړيْ او سنړ چه ما ورکړل چه په دغو خپل
۱۰ برمندوالي پټ کړي بیرته واخلم ۱۰ او اوس دَ دي شرمګاه به دَ دي دَ
مینو دَ وړاندِ فاشه کړم او هیڅوک به ئي ځما له لاس نه خلاصه نه
۱۱ کړي ۱۱ او د دي ټولي خوښئ او عیدونه او نوي میاشتي او سبتونه او
۱۲ ټول مقرّر مجلسونه به موقوف کړم ۱۲ او زه به دَ انګورو او دَ انځیرو
هغه وني چه دَي به ویل چه دا ځما خرڅي دِي چه ځما مینو ما ته
بخښلي دِي بربادِي کړم او ځنګل به ور نه جوړ کړم او دَ ځنګل ځناور
۱۳ به ئي خوري ۱۳ او زه به دَ بعلیم دَ ورځو بدله چه په هغو کښ به
دَي دَ هغو دپارَ لبان سیځل او ځان به ئيُ په نتو او په جواهرو
ښایسته کاوه په خپلو مینو پسي به لاړه او زه به ئيُ هیر کړم ورنه واخلم
۱۴ خداوند فرمائي ۱۴ لیکن ګوره زه به ئيُ دلاسا کړم او بیابان ته به ئيُ
۱۵ بوزم نو هم دَ هغي دَ زړه دَ تسلّي خبري به ور ته وکړم ۱۵ او له هغه
ځاي نه به دَ دي تاکستان دي ته ورکړم او دَ عکور خوړه هم دي
دپارَ چه دَ امید دروازه وِي او دا به هلته کښ سندري وائي لکه
۱۶ چه دَ ځوانۍ په ورځو کښ ۱۶ او دَ هغي ورځي په شان چه په هغي کښ
له مصرَ را وختله او هغه ورځ به داسي وشي خداوند فرمائي چه
۱۷ ته به ما ته ایشي وائي او بیا به بعلي نه را نه وائي ۱۷ ځکه چه دَ
بعلیم نومونه به ئيُ له خولي وباسم او دوي به هیڅري دَ هغو په نومونو
۱۸ یاد نه شي ۱۸ او زه به هغه ورځ دَ دوي دپارَ دَ صحرا له وحشیانو
او دَ هوا له مرغانو او له ځمکنیو دَ زمکي سره یوه وعده
وکړم او لیندي او توري او جنګونه به له هغي زمکي مات کړم او زه
۱۹ به دوي په قراري سره ځملوم ۱۹ او تا به تر ابدَ پوري خپله کوزدنه کړم

هو تا به په صداقت او په عدالت او په مهرباني او په رحمت سره
۲۰ خپله کوزدنه کړم ۲۰ زه به دِ په امانتدارِي سره کوزدنه خپله کړم
۲۱ او ته به خداوند وپېژني ۲۱ او هغه ورځ به داسې وشي چه زه به
ځواب وکړم خداوند فرمايي زه به آسمان ته ځواب ورکړم او هغه
به دَ زمکي ته ځواب ورکړي او زمکه به غلّي ته او نويو شرابو ته او
۲۳ تېلو ته ځواب ورکړي او دغه به يزرَاعيل ته ځواب وکړي ۲۳ او زه
به هغه په هغې زمکي کښې دَ خپل ځان دپارَ وکرم او په لوَرُحامه به رحم
وکړم او لوعَمي ته به ووايم چه ته ځما امّت يې او دي به وايي اي ځما الله ٭

## دريم باب

۱ آ خداوند راته وفرمايل چه بيا لاړ شه او له يوې ښځې سره چه دَ
خپل دوست محبّتي دَه ليکن زناکاره ده يارانه وکړه لکه چه خداوند
له بني‌اسرائيل سره چه په غيرو معبودانو نظر کوِي او دَ ميوزانو ټکيِ
۲ غوارِي محبّت لرِي ۲ نو مِ هغه په پنځلس روپيِ او په يونيم خومر
۳ اوربشو دَ ځان دَپارَ وپرووده ۳ او ور ته مِ ووِ چه ته به ځما دَپارَ تر
ډېرو ورځو پورې کښيني ته به دَ زنا کار و نه کړې نه به دَ کوم ميړه
شِي او زه به هم ستا دپارَ داسې يم
۴ ۴ ځکه چه بني‌اسرائيل به تر ډېرو ورځو پورې بې له بادشاه
او بې له شاهزاده او بې له قرباني او بې له ستني او بې له افوده
۵ او بې له ترافيم وِي ۵ او پس له هغه به بني‌اسرائيل وګرزي او
خداوند الله خپل او خپل بادشاه داؤد لوه به ولټوِي او په آخرو ورځو
کښې به خداوند ته او دَده وخير ته ويره وکړِي ٭

## څلورم باب

۱ آ اي بني‌اسرائيل دَ خداوند کلام واورئ ځکه چه دَدې زمکي دَ
اوسيدونکيو سره دَ خداوند مقدّمه ده ځکه چه په ملک کښې نه
۲ رښتيني نه شفقت نه دَ الله پېژندګلوِي شته ۲ بغير له لعنتَ او دروغ

ويلو او خونَ او غلا او حرامكاري نه نور هيڅ نشته دوي چوي او په
۳ خون باندِ خون كيږي ۳ دي دَپارَ به زمكه وِير وكړي او هر يو چه په
هغي كښ اوسي اودَ صحرا ښاروي او دَ هوا پرندګان تول به سره
۴ ناتوانَ شي بلكه دَ درياب كبان به هم ويستلي شي ۴ په دي دِ هم
هيڅوك بحث نه كوي او نه دِ به څوك تهمت لګوي ځكه چه ستا خلق
۵ دَ هغو په شان دي چه له كاهنانو سره مقدمه كوي ۵ دي دَپارَ به
ته په ورځي كښ ويرزي او له تا سره به نبي هم په شپي كښ ويرزي
۶ او زه به ستا مور خرابه كړم ۶ زما خلق دَ نامعرفت له سببَ هلاك
شوي دي دي دَپارَ چه تا له معرفت نفرت كړي دَي زه به هم له تا
نه نفرت وكړم چه ته به زما دَ ورانلِ كاهن نه شي او دي دَپارَ
چه تا دَ خپل الله تورنت هير كړي دَي زه به هم ستا اولاد هير
۷ كړم هو زه ۷ لكه چه هغوي ډير شول هم هسي هغوي زما خطا وكړه
۸ دي دَپارَ به دَ هغو دبدبه په رسوائي بدله كړم ۸ هغوي زما دَ خلقو
۹ دَ خطا خوري او دَ هغو په بدكاري خپل ځان لګوي ۹ نو لكه چه دَ
خلقو حال دَي هسي به دَ كاهنانو حال وي زه به دَدوي دَ لاري
۱۰ سزا وله وركړم او دَ هغو دَ كارونو بدله به ورنه واخلم ۱۰ هغوي
به وخوري ليكن اسوده به نه شي هغوي به زنا وكړي مكر زيات به
۱۱ نه شي ځكه چه دوي دَ خداوند پروا پريښودله ۱۱ حرامكاري او شراب
۱۲ او نوي شراب زړه وړي ۱۲ زما خلق دَ خپل لرګي له بُت نه سوال كوي
دَ هغو لكړه هغوي له ځواب كوي ځكه چه دَ حرامكاري روح ګمراهان
۱۳ كړي دي او دَ خپل الله تر لاندِ ئي حرامكاري كړي ده ۱۳ دَ غرونو په
څوكو باندِ قرباني تيروي او په غونډيو لبان سيځي او دَ بلوط او دَ
سپيدار او دَ شاه بلوط (تروني) دَ لاندِ هم ځكه چه دَ هغو سيوري
ښائسته دَي دي دَپارَ ستاسي لونړي كنجنيِ والي كوي او ستاسي
۱۴ نږندي زنا كوي ۱۴ او چه ستاسي لونړه كنجني والي وكړي او ستاسي

نیونديِ زنا وکړي نو زه به دوي ته سزا ور نه کړم ځکه چه دوي پخپله
هم له کنچنیو سره په ډډه ځي او له کسبیانو سره قرباني کذاري دي
١٥ دپارَ دا خلق چه نادان دي برباد به شي ١٥ اي اسرائیل هرڅو چه
ته کنچني بازي وکړي نو هم هسي دِ نه وي چه یهوداه هم ګناهګار
شي تاسي په جلجال کښ مه راځئِ او بیت آون ته مه پورته کیږئِ او
١٦ قسم مه خورئِ لکه چه خداوند ژوندَي دَي ١٦ ځکه چه اسرائیل وسورېدهٔ
لکه سورانه سخوندره اوس به خداوند دوي په ارت ځاي کښ دَ
١٧ ګډوریو په دود وڅروي ١٧ افرائیم له بتانو سره پیوسته شه هغه
١٨ پریږده ١٨ دَدوي غوره شراب تارخه دي نو دوي ډېر ځله زنا کوي دَ
١٩ هغه سردار مخ توري خوښوي ١٩ باد هغه لره په خپلو وزرو کښ نیولي
دَي او هغوي به له خپلو قربانیو شرمنده شي ۞

# پنځم باب

١ ١ اي کاهنانو دا خبره واورئِ او اي دَ اسرائیل ټبرَ غوږونه کیږدئِ
او اي دَ بادشاه کورمي واورئِ ځکه چه فتویٰ په تاسي بانِدَه دي
دپارَ چه تاسي په مصفاه بانِدِ بو دام شوئِ او هم یو لومه چه
٢ په تابور بانِدِ غوړولي دَه ٢ هغوي مردودان وژلو ته لانِدِ تللي دي
٣ لیکن زه به هغوي ټولو ته تنبیه ورکړم ٣ زه هم افرائیم پیژنم او
اسرائیل هم رانه پټ نه دَي ځکه چه ته اي افرائیم دَ زناکاري کوي
٤ او اسرائیل آلوده دَي ٤ دَدوي کارونه دوي لره دَ الله په لوري کرزیدل
نه ورکوي ځکه دَ زناکاري روح په دوي کښ دننه دَي او دَ خداوند
٥ پوهه نه لري ٥ او دَ اسرائیل کبرجني دده په مخ کواهي لي او اسرائیل
او افرائیم به په خپلو بدیو کښ وېرزي او یهوداه به هم دَدوي
٦ سره وېرزي ٦ دوي به له ګلو او له رمو سره دَ خداوند په لټولو
سر شي مګر نه به ئي مومي ځکه چه ده خپل ځان ور نه جدا کړ
٧ ٧ دوي دَ خداوند سره ټګي وکړه دي دپارَ چه حرام زامن ور نه

پیدا شول اوس به یوي میاشتي هغوي دَ هغو دَ کروندو سره ونغړي
۸ ۸ په جبعه کښ قرنا ووهه او په رامه کښ توري په
بیتِ آون کښ چیغي وکړئِ چه اي بنیمین هغه په تا پسي کیږي -
۹ دَ تنبیه په ورځ به افرائیم ویران شي دَ اسرائیل دَ فرقو په منځ
کښ هر هغه څه چه په یقین سره به وشي ما ظاهر کړي دي -
۱۰ ۱۰ دَ یهوداه سردار دَ هغو په شان شه چه سرحد نړوي زه به په
۱۱ هغوي بانډِ خپل قهر لکه اوبه توي کړم ۱۱ افرائیم مظلوم کیږي او
له انصاف نه اوړه اوړه شه چه ده شروع وکړه چه په بطالانیسي
۱۲ وګرزیدي ۱۲ نو به زه دَ افرائیم دَ پارَ دَ پتنګ په دود شم او دَ یهوداه
۱۳ دَ ټبر دَ پارَ دَ لرګي وروستوالي په شان شم ۱۳ او افرائیم خپله ناجوړتیا
ولیده او یهوداه خپل پرهار نو افرائیم اسور ته تلي وه او هغه
یاریب بادشاه ته ئي استولي وُه لیکن هغه تا له صحت درکولي نه
۱۴ شي او ستا پرهار جوړولي نه شي ۱۴ زه به دَ افرائیم دَ پارَ دَ ببر زمري
په شان او دَ یهوداه دَ پارَ دَ ځوان زمري په دود شم زه هو زه به
ئي څیري کړم او لاړ به شم زه به ئي وښیسم او هیڅوک به ئي خلاص
۱۵ نه کړي ۱۵ زه به روان شم زه به خپل مکان ته بیرته لاړ شم تر هغه
پوري چه دوي پخپلي ملامتیا قائیل شي او دوي څما مخ ولټوي
دوي به پخپل غم کښ وقتي طلبګار وي ❊

## شپږم باب

۱ ۱ راځئ چه موږ دَ خداوند په لوري وګرزو ځکه چه ده هغه دَي چه
موږ ئي څیري کړي یُو او هم دَي به شفا راکاندِ ده زخمي یُو او هم دي به
۲ مو (پرهارونه) وتړي ۲ دي به پس له دوو ورځو تازه ژوند را وبخښي
دریمه ورځ به مو پورته کړي او موږ به دَده په حضور کښ ژوندي
۳ اوسو ۳ نو به موږ پوه شو هو خداوند دِ وپیژنو موږ دِ پیروي
وکړو دَ صباح په شان دَده وتل مقرر دي او دَ باران په څیر به څمږ

دَپارَ دَده راتله وِي دَ وروستِنِي باران غوندِ چه زمكه لونده كوِي
٣ ته اي افرائيمَ زه له تا سره څه وكړم اي يهوداه زه له تا سره
څه وكړم ځكه چه ستا نېكي دَ صباح دَ اوريځي په شان ده او دَ هغه
٥ شبنم په شان چه صبا وختي درومي ۞ دي دَپارَ ما هغوي دَ نبيانو په
وسيلي توږلي دي او دَ خپلي ژبي په كلام مِ وژلي دي ستا فتواوي چه
٦ راغلي دَ برېښنا په دود لاړي ۞ ځكه چه زه رحم غواړم او نه قرباني
او پېژاندل دَ الله زه په نسبت دَ سېځونكيو قربانيو زياته طلب كوم -
٧ ۞ مگر دوي دَ آدم په څېر دِي چه وعدي ئي ماته كړي دَه هغوي
٨ هلته كښ له ما سره ټكي كړي دَه ۞ جلعاد چه دَي دَ بدانو ښهر دَي
٩ پايمال شوي په وينو ۞ لكه چه دَ شوكونكيو ټولي وچا سرِي ته په
پټوني كښ كښيني هم هسي دَ كاهنانو ټولي دَ سكم په لاري كښ قتل
١٠ كوِي هو هغوي زبون كار كړي دَي ۞ ما يو هيبتناك څيز دَ اسرائيل په
ټبر كښ ليدلي دَي هلته كښ دَ افرائيم زناكاري ده او اسرائيل
١١ آلوده شه ۞ اي يهوداه ستا دَ لوكولو وقت هم مقرر شه هغه وقت
چه زه دَ خپلو خلقو بنديواني بيرته راوګرزوم *

## اوم باب

١ ۞ هركله چه زه دَ اسرائيل په جوړولو كښ وم نو دَ افرائيم بدكاري
او دَ سمروڼ شرارتونه ښكاره شول ځكه چه دوي دروغ كوِي غله
٢ ننوزِي او دَ لوټيريو ټولي باهر لوټ كوِي ۞ او په خپلو زړونو كښ فكر نه كوِي
چه دَ دوي ټول شرارتونه ځما په ياد دِي اوس دَ دوي عملونو دوي لوړ
٣ په لور كېر كړي دِي هغه ځما دَ مخ دَ وړاندِ دِي ۞ دوي بادشاه په خپلي
٤ بدكاري او اميرانو له په خپلي دروغ كوئي خوشحالوِي ۞ دوي ټول واره
زانيان دِي او دَ هغه تناره په شان دِي چه نانبائي ئي تود كړي او تر
هغه دوري اغښلو او دَ اور له بليدلو نه وزګار شي څو چه خميره
٥ پوره نه شي ۞ ځموږ دَ بادشاه په وقت كښ اميرانو دَ شرابو له ګرمي نه

په رنځ گرفتار کړ هغه دَ ټوقیانو په ملګري کښ خپل لاسونه اوږدوي
۶ ۶ هغوي په پټوني کښ غلي شوي خپل زړونه ئې دَ تناره په دود
جوړ کړي دي دَ هغو نانباي ټوله شپه خوب کوي هغه دَ صباح په
۷ وقت دَ لنبي وال اور په دود بلیږي ۷ هغوي ټول واړه دَ تناره په
شان گرمیږي اوخپل قاضیان ئې خوړلي دي دَ هغو ټول بادشاهان
۸ پړانه دي دَ هغو په منځ کښ هیڅوک نشته چه ما وبولي ۸ افرائیم
له غیر قومونو سره ګډ شوي دي افرائیم یوکاک دَی چه اړولي
۹ شوي نه دَي ۹ بیګانهٔ دَ هغه قوّت ولغرد او دَی پرِ خبرِ نه دَي
او په ده باندِ سپین ویښتهٔ هم توي شول لیکن دَی ورنه خبر
۱۰ نه دَي ۱۰ او دَ اسرائیل مغروري دده په مخ کښ شاهدي لي په
دي هم دوي دَ خداوند خپل الله په لوري نه ګرزي او سره له
۱۱ دغه ټوله حال ئې نه لټوي ۱۱ افرائیم دَ هغه کوتر په دود دَي چه
۱۲ ناپوهه وي مصر ته ناري وهي آسور ته درومي ۱۲ په هري لاري چه
دوي لاړ شي زه به په هغوي باندِ خپل جال وغوړوم هغوي به
دَ هوا دَ مرغانو په شان لاندِ را وغورزوم او تنبیه به ورکړم لکه
۱۳ چه دَ هغو دَ جماعت په منځ کښ دا آوریده کیږي ۱۳ هَي هَي په هغو
څکه چه څما له لوري وتښتیدل هلاکت په هغو دَي چه له ما نه
یاغیان شول هرکله چه زه دَدوي په خلاصونکي وم نو دوي څما په حق
۱۴ کښ دروغ ویلي دي ۱۴ بلکه دوي پخپلو کټونو باندِ ناري وهلي لیکن
ما ته ئې په زړه سره ناري کړي نه دي دوي خو دَ غلي او دَ شرابو
۱۵ دَپارَ سره ټولیږي مګر له ما نه یاغیان دي ۱۵ سره له دي چه ما
هغوي ته تعلیم ورکړ او وزرو ته مې زور وباخښه نو هم دوي ما ته
بدي اندیښني کوي دوي ګرزي لیکن دَ تعالیٰ په لوري نه: دوي دَ کږي
لیندي په دود دي دَ هغو امیران به دَخپلو ژبو دَ گستاخي په سبب په
توري پریوزي له دي نه به دوي دَ مصر په زمکه کښ مسخره شي ؛

# اتم باب

۱ آ په خپلي خولي کښ تورنا ونيسه هغه دَ تجير په شان دَ خداوند په
کور باندِ ځکه چه دوي ځما له وعدي وګرزيدل او ځما دَ تورنت په خلاف
۲ ياغيان شول ؛ هغوي به ما ته را ناري کړي اي ځما الله موږ
۳ بني اسرائيل دِ پيژنُو ؛ اسرائيل ښه څيز وغورزاوه دښمن به په هغه
۴ پسي وزغلي ؛ هغوي بادشاهان مقرّر کړي دِي مګر نه ځما له لوري
هغوي سرداران درولي دِي او ما نه و پيژاندل هغوي دَ خپلو ځانونو
دَپارَ دَ سپينو او دَ سرو زرو معبود جوړ کړي دَي دي دَپارَ چه
۵ دوي پريکړي شي ؛ اي سمرونه ستا سخيَ دَ نفرت ناکي سبب دَي ځما
غصّه په هغو باندِ ګرمه شوي دَه ترڅو پوري دَ دغو پاکيزه کيدل
۶ نه کيږي ؛ ځکه چه دا هم له اسرائيلَ وَه هغه ښيُ چه کاريګر
جوړ کړي دَي خداي نه دَي په يقين سره به دَ سمرون سخيَ ټکړي
۷ ټکړي کړي شي ؛ دي دَپارَ هغوي باد وکاره هغوي به سلئ لو کړي
فصل ولاړ نه لري نه به دَ هغو له وربو دوړه پيدا شي او که پيدا
۸ هم شي نو بيګانه خلق به يي ونغړي ؛ اسرائيل ونغړد شه اوس دَ
هغو قومونو په منځ کښ دَ هغه لوښي په دود شي چه بيي نه خوښ
۹ کيږي ؛ ځکه چه دوي اسور ته پورته شوي دِي دَ هغه ګوربخر په
۱۰ شان چه يواځي اوسي ؛ افرائيم يارانو ته خرڅه ورکړي دَه نوزه به
هم اوس هغوي را جمع کړم اګر که هغوي دَ قومونو په منځ کښ
خرڅه کړي دَه او هغوي به پس له لږ مُدي دَ سردارانو دَ بادشاه
۱۱ دَبار په سبب غمجن کړي شي ؛ ځکه چه افرائيم دَ خطا دَپارَ ډير مذبحونه
۱۲ جوړ کړي دِي دَ هغو مذبحونه به دَ هغه دَ خطا سبب شي ؛ ما دَ خپل
تورنت لس زره (صطامونه) دَ هغو دَپارَ وليکل مګر دغه بيګانه ګڼل
۱۳ شي ؛ هغوي ځما دَ هديو دَ قربانيو دَپارَ غوښي باند کوي او خوري
مګر خداوند يي نه قبلوي اوس به دي دَ هغو بدِي په ياد کړي او

دَ گناهونو سزا به ورکړِي مصر ته به بیرته لاړ شِي ۱۴ دي دَپارَ ۱۴
چه اسرائیل خپل خالق هیر کړي دیَ او محلونه ئې جوړ کړِي دي
او یهوداه ډیر مضبوط ښهرونه آباد کړِي دِي زه به دَ هغه په
ښهرونو اور واستوم او دَ هغو محلّونه به وخورِي ❊

## نهم باب

آ اي اسرائیلَ دَ قومونو په دود دَ خوشِي په سبب مه خوښیږه ۱
ځکه چه تا زنا وکړه خپل الله دِ پریښود تا په هر یوه درمند کښ
دَ کنچنئِ په خرڅي مینه کړي دَه ۲ درمند او انګورِي تالاب به دَ هغوِي ۲
پرورش و نه کړِي او نوِي شراب به په کښ تمام شِي ۳ دوي به ۳
دَ خداوند په زمکي کښ نه واوسِي افرائیم به مصر ته پسته راشِي
او په اسور کښ به ناپاک ځیزونه خوري ۴ دوي به شراب دَ خداوند ۴
دَپارَ څڅکا و نه کړِي او دَ هغو ذبحي به خوښِي نه کړِي دوي به دَ
هغو دَپارَ دَ وِیر ډوډئو دَ ډوډئِ په شان شِي هرڅوک چه هغه خوري
ناپاک به وِي ځکه چه دَ هغو ډوډئِ به دَ هغو دَځان دَپارَ دَ خداوند
په کور کښ داخلي نه شِي ۵ تاسو دَ جماعت په ورځ او دَ خداوند دَ ۵
عیدونو په ورځ به څه کړئِ ۶ ګورئِ هغه له تباهِي تلي دِي لیکن ۶
مصر به هغوِي جمع کړِي موف به ئې ښخ کړِي جلبنک به دَ هغو
دَ سپینو زرو دَ خوښِي ځیزونه قبضه کړي دَ هغو په ډیرو کښ به
اغزِي زرغونه شِي ۷ د سزا ورځي راغلِي دِي دَ بدلي اخستلو ورځي ۷
راغلي دِي اسرائیل به معلوم کړِي نبِي نادان دَي روحانِي سړيَ
لیونيَ دیَ ستا دَ ډیري بدکاري او دَ ډیر عداوت په سبب ۸ افرائیم ۸
نګاهبان ځما دَ الله سره : نبیان پخپلو ټولو لارو کښ دَ ښکاري
لومه دَي دوي دَ خپل الله په کور کښ عداوت دَي ۹ هغوي لکه چه ۹
دَ جبعه په ورځو کښ وشول خپل ځانونه بېحده خراب کړي دِي دَي
په دَ هغوِي بدِي په یاد کړِي دَي به دَ هغو دَ ګناهونو سزا ورکړِي

۱۰ ۱۰ ما اسرائیل دَ هغو انګورو په شان چه په بیابان کښې وِي وموندل
لکه دَ انځیر ورښبي پخه میوه چه اول وار ولګي هم هسي مِ ستاسي
پلرونه او نیکونه ولیدل مګر دوي بعل‌فغور ته ورغلل او دَ هغه
بي‌حیا دَپارَ هغوي ځان خپل نذر کړ هغوي دَ هغه خپل معشوق
۱۱ په دود مکروه شول ۱۱ دَ افرائیم دبدبه به دَ چڼچڼري په دود والوزي
تر دي حده چه نه به ئي زېږېدل: نه به ئي دِ ګیدي: نه به ئي بارداري
۱۲ وِي ۱۲ بلکه هرڅو چه دوي خپل اولاد ساتي نو هم زه به ئي ورنه
رانیسم چه هیڅوک آدمزاد پاتي نه شي په یقین سره به په دوي هَيهَي
۱۳ وِي هغه وقت چه زه ور نه لاړ شم ۱۳ زه افرائیم وینم چه دي دَ
صور په شان په ښه ځاي کښې لګولي شوي دَي مګر دَ افرائیم به دا
۱۴ حال شي چه دوي به خپل ځامن وقتلونکي ته ور وباسي ۱۴ اي خداوندَ
هغوي ته ورکړه نو هغوي به څه درکړي دوي ته هغه ګیډوه چه وېږي
۱۵ او هغه تِي چه وچ شي ۱۵ دَ دوي شرارت ټول په جلجال کښې دَي هو
هلته کښې مِ له هغو سره کینه وکړه او دَ هغو دَ بدو کارونو په
سبب مِ له خپل کور نه ویستل او بیا به مینه ورسره و نه کړم
۱۶ ټول سرداران ئي نافرمانه دي ۱۶ افرائیم وهلي شوي دَي دَ هغو بېخ وچ
شه دوي کښې به میوه رانه وړي او که دَ دوي (بچي) وزیږوي نو زه
۱۷ به دَ هغو دَ ګیډي ګرانه میوه و وژنم ۱۷ خما الله به ئي لري کړي
دي دَپارَ چه هغوي دده اورېدونکي نه شول او هغوي به دَ
قومونو په منځ کښې مسافران شي ۰

## لسم باب

۱ ۱ اسرائیل یو په پاڼړیو ګورتاک دَي چه میوه په کښې ولګیدله لکه
چه دَ هغه میوي زیادتي دِي. هم هسي دیر مذبحونه زیات کړل لکه
چه دَ هغه زمکه ښه وه هم هسي ئي ښه ستني جوړي کړي ۲ هغوي
زړه وېشلي شه اوس به ګرم کړي شي دَي به دَ هغو مذبحو وکاږي

او دَ هغو ستني ماتي کړي ۳ څکه چه اوس به دوي وواېي چه څمونږ ۳
هيڅوک بادشاه نشته دي دَپارَ چه مونږ له خداوند نه نه ويريږو نو
بادشاه به څمونږ دَپارَ څه وکړي؟ ۴ هغوي (پوچي) خبري کوي او وعدي ۴
کوي دروغ قسمونه خوري دي دَپارَ لکه چه بربکه دَ پټي په کرکونو
کښې هم هسي به سزا پر زرغونه شي ۵ دَ بيتِ آون دَ سخيو په ۵
سبب به دَ سمرون اوسيدونکي وډاريږي چه دَ هغه ځاي خلق به په
هغه وژاړي او دَ هغه ځاي بُت پرستَ کاهنان به چه په هغه دنګيدلي
وُو دَ هغه دَ دبدبي په سبب چه له ده لاړه شوه ۶ له ده به ئي ۶
هم اسور ته يوسي هغه ياريب بادشاه نذر به ئي کړي افرائيم
به پښيماني واخلي او اسرائيل به له خپل مصلحت نه شرمنده
شي ۷ سمرون بادشاه برباد شوي دي دَ هغه زګ په دود چه دَ ۷
اوبو په مخ باندِ وي ۸ او دَ آون اوچت مکانونه چه دَ اسرائيل خطا ۸
ده و به نړولي شي او دَدوي په مذبحونو به اغزي ازغکي زرغونه
شي او دوي به غرونو ته وواېي چه مونږ پټ کانړئ او غونډيو
ته چه په مونږ پريوزئ ۹ اي اهلِ اسرائيل دَ جبعه له ورځو دِ ګناه ۹
کړي دَه هلته کښې دوي ودريدل چه هغه جنګ په جبعه کښې
دَ هغو دَ بدي په بچيو نه پريوزي ۱۰ چه څما نيّت وشي نو ۱۰
زه به هغو ته سزا ورکړم او قومونه به ورباندِ ټول شي هر کله
چه هغوي دَدوي په دوو ګناهونو کښې بديان کړي شي ۱۱ نو افرائيم ۱۱
يوه آموخته سخي دَه چه په غوبل خوښيږي مگر زه دَ هغې په ښائسته
غاړي تير شوم زه به په افرائيم باندِ سوار کښېنوم يهوداه به يوه
وکړي او يعقوب به دَ هغو لوټي ماتي کړي ۱۲ دَ خپل ځان دَپارَ ۱۲
رښتيني وکړئ او دَ نيکي په موافق ئي لو کړئ او بنجر دَ ځان دَپارَ
يوه کړئ څکه چه دا هغه وقت دَي چه په دغه کښې تاسي خداوند
ولټوئ تر هغه پوري چه راشي او په تاسي رښتيني واوروي –

١٣ ١٣ تاسي دَ شرارت يويه وكړه تاسي بدي لوكړه تاسي دَ دروغو ميوه
وخوړه ځكه چه تا په خپلې لارې دَ خپلو بناغليو په ډېرولي تكيه وكړه
١٤ ١٤ دي دَپارَ به ستا په خلقو كښې يو شوروشر پورته شي او ستا
ټولي قلاوي به ونړولي شي لكه چه شلمن دَ جنګ په ورځ كښې
بيتِاربئيل ونړاوه چه مور له خپلو بچيو سره ټكړي ټكړي كړي شوي
١٥ ١٥ هم هسي به هغه له تاسي سره په بيتِايل كښې ستاسي دَ
ډېري ډېري بدئ په سبب وكړي دَ اسرائيل بادشاه به صباح بالكل
مړكړي شي ٭

# يولسم باب

١ ١ چه اسرائيل هلك وُه ما مينه پرې كوله او خپل زوي مې له مصرَ
٢ راوباله ٢ هركله چه هغوي دوي راوبلل نو هغوي دَدوي له مخې نه
لاړل هغوي بعليم لره قربانئ تيري كړي او دَ تراشليو بتانو لره ئي لُبان
٣ وسيزل ٣ ما افرائيم په لاس ونيو په پښو تلل مې ور وښودل ليكن
٤ دوي پوهه نه شول چه ما صحت ور وباخښه ٤ ما دوي دَ انسان
غونډِ په رسيو او دَ مينې په پړيو وځكول زه دَدوي په حق كښې
دَ هغو په شان وم چه له غاړي ئې ټَغ اخلي او ما دوي ته خوراك
٥ كيښود ٥ دوي به دَ مصرَ وزمكي ته بيرته ورنه شي مګر اسور به
٦ دَ هغوَ بادشاه وِي دي دَپارَ چه دوي له ګرزيدلو انكار وكړ ٦ دَ
هغوي په كليو كښې به توره وبريښي او دَدوي اړبنګونه تمام كړي
٧ او دوي به دَدوي دَ مصلحتونو په سبب ونغري ٧ او زما خلق له
ما نه ګرزيدلو ته نږدي دَي سره له دي چه هغوي ئې دَحق تعالیٰ په
٨ لوري وبلل مګر هيچا ونه غوښتل چه ده ته بزرګي ووركړي ٨ اي
افرائيمَ زه له تا سرهِ څه وكړم اي اسرائيلَ زه دِ څرنګ وسپارم
زه دِ څرنګ دَ ادماه په دود كړم اودَ ضبوئيم په شان دِ جوړ
٩ كړم ٩ زما زړه په ما كښې پېچ كوي زما مهربانئ وخوځيدلي زه به دَ

خپل قهر دَ کړمي په موافق کار ونه کړم زه به بيا رانه شم چه افرائيم
هلاک کړم ځکه چه زه الله يم انسان نه يم زه ستا په منځ کښ
قدّوس يم او له قهرَ سره به رانه شم ١٠ دوي به دَ خداوند پيروي ١٠
وکړي هغه وقت چه دَ ببر زمري په شان وغړنبيږي هغه وقت به
دَ هغه زامن دَ سمندر له لوري په لړزي سره راشي ١١ هغوي به ١١
له مصرَ دَ چڼرچڼري په شان او دَ اسور له زمکي به دَ کوتري په
شان په لړزي راشي او زه به دوي دَ دوي په کورونو کښ و اوسوم
خداوند فرمائي

١٢ افرائيم په دروغو سره او دَ اسرائيل ټبر په مکّاري سره ١٢
ګير کړلم او يهوداه هم تر اوسَ پوري په الله سره حکومت کوي
هو له قدس سره امانت‌دار دَي ٭

## دولسم باب

١ افرائيم په باد خړي هو دي په مشرقي باد پسي زغلي دَي ټوله ورځ ١
زيات دروغ وايي او ظلم کوي دوي له اسور سره وعده کوي او تيل
مصر ته رسَوي ٢ دَ خداوند له يهوداه سره بوه جګړه دَه او يعقوب ٢
ته لګه چه دده لاري دي هسي سزا به ورکړي دده له عملونو سره
به موافقه بدله ورکړي ٣ دده په رحم کښ دَ خپل ورور پڼدي ونيوي ٣
او ده په خپل زور سره له الله سره کشتي وکړه ٤ هو ده له فرښتي ٤
سره کشتي وکړه او پرِ غالب شه ده وژړل او هغي ده ته زاري
وکړي ده هغه په بيت‌ايل کښ بيامونده او هلته کښ ئي له ما
سره خبري وکړي يعني خداوند دَ لښکرو يهوَه دده يادګار دَي-
٥ پس ته دَ خپل الله په لوري وګرزه او رحم او انصاف وساته او ٥
مدام دَ خپل الله اميدوار شه ٧ کنعان چه دَي په لاس کښ ئي دَ ٧
مکر تلي دي او په ظلم مينه کوي ٨ افرائيم خو وائي چه زه دولتمند ٨
شم او ځان سره مال مِ وموند ځما په ټولو مشقتونو کښ هغه

9 زبوني چه ګناه وګڼله شي په ما کښ به يې نه موهي ۹ په دي هم
زه دَ مصر له زمکي نه خداوند ستا الله يم زه به آينده تا په
10 خيمو کښ دَ عيد دَ ورځو په دود و اوسوم ۱۰ ما دَ نبيانو په معرفت
کلام کړي دي او ډير خوبونه مي ظاهر کړل او ما نبيانو په منځ کښ
11 کړي ډير مثالونه مي در ښکاره کړل ۱۱ په جلعاد کښ بدکاري شته
څه؟ هغوي په يقين سره بطلان دي هغوي په جلجال کښ سخوندران
قرباني کوي دَ هغوي مذبحونه دَ پټي په کرکونو باندِ دَ تودو په شان
12 دي ۱۲ او يعقوب دَ ارام ورشو ته وتښتيده هو اسرائيل دَ ارتيني
13 په خاطر نوکر شه ده دَ ارتيني دپاره شپني وکړه ۱۳ دَ يوه نبي
په معرفت خداوند اسرائيل له مصر باهر راوخيژاوه او په
14 نبي سره دي وساته شه ۱۴ افرائيم دَ تلخي په غضب کړ دي دپاره
به دده خداوند دده خون په ده باندِ پريږدي او دده رسوائي به
په ده باندِ بيرته ور وګرزوي ؛

## دیارلسم باب

1 ۱ هرکله چه افرائيم ويل نرهيدل وو دغه دَ اسرائيل په منځ
کښ خپل ځان سرفراز کړ مګر چه په بعل کرم شه نو مړ شه
2 ۲ او اوس دوي په ګناه باندِ ګناه کوي دوي دَ خپلو سپينو زرو
اچولي صورتونه دَ خپل ځان دپاره جوړ کړل او دَ خپلي پوهي په موافق
يې بتان طيار کړل چه دَ ټولو کاريګرو کارونه دي دوي دَ هغو په
حق کښ وائي چه هغه څوک چه قرباني تيروي نو سخي دِ ښکلوي
3 ۳ دي دپاره به دوي دَ صباح دَ اوريځي او دَ شبنم په شان چه
وختي ځي تيريږي او دَ پرک په دود چه په ګردباد سره له درمنده
الوزوله شي او دَ هغه لوګي په څير به شي چه له موريئ وزي
4 ۴ مګر زه دَ مصر له زمکي نه ستا خداوند الله يم او بغير له
ما نه هيڅ معبود مه پيژنه ځکه چه بي له ما نه هيڅوک خلاصي

٥ ورکونکي نښته ۵ ما په بیابان کښې په هغې زمکې کښې چه په کښې
٦ تنده وه ستا خبر واخست ٦ دَ دوي دَ څراګاه سره موافق ماړه شول
او چه ماړه شول نو ته په زړه کښې ئې غرور راغې له دې سببَ
٧ مو هېر کړلم ٧ څکه زه به دَ دوي دَپارَ دَ ببر زمري په شان شم
٨ دَ پړانګ په څېر به په لارې کښې ناست دوي ته پټوني وکړم ٨ زه
به دَ هغه یږ په دود چه بچي ورنه شوکولي شوي وي ور ته په
پېښ شم او دَ هغو دَ زړه پردې به وخیرم او دَ زمرۍ په شان
٩ به ئې هلته کښې ونغړم دَ صحرا درندګان به ئې وخیري ٩ اي
اسرائیل تا خپل ځان برباد کړي دَي په دې چه زه ستا کومک
١٠ یم ١٠ اوس ستا بادشاه چرته دَي دې دَپارَ چه دَي تا لره په ټولو
ښهرونو ستا کښې خلاص کړي او ستا قاضیان چرته دي چه دَ
١١ هغو په باب دې ویل چه یو بادشاه او امیران ما ته راکړه ١١ ما
پخپلې غصې کښې تا ته بادشاه درکړ او په خپل غضب سره مې
١٢ واخست ١٢ دَ افرائیم بدکارې تړلې شوه دَ هغه ګناه ذخیره دَه
١٣ ١٣ دَ لنګېدونکې ښځې به دردونه پرې راشي هغه نادان هلک دَي
څکه چه وقت دَي چه دغه دَ هلکانو دَ راوتلو په ځاي کښې درنګ
١٤ ونه کړي ١٤ زه به هغوي دَ ګورهنډې له اختیار نه په فدیې رانیسم
هغوي به له مرګ نه خلاص کړم اي مرګه ستا مرګو چرته دَه
اي ګورهنډې ستا هلاکت چرته؟ پښیماني څما له سترګو پټه دَه
١٥ ١٥ اګر که هغه دَ خپلو ورونړو په منځ کښې مرادمند دَي لیکن
دَ مشرق باد به راشي دَ خداوند باد به له بیابانَ راشي او دَ هغه
چینه به وچه شي او خوټندۍ به خشکه شي دي به دَ ټولو
ښائسته ؤ لوښیو خزانه لوټ کړي سمرون به دَ خپلې ګناه سزا مومي
څکه چه دَي له خپل الله نه یاغي شوي دَي هغوي به په توري پرېوزي
دَ هغو هلکان به ریزمرېږي او دَ هغوي بارداري ښځې به وڅرلي شي ❖

# څورلسم باب

۱ آ اي اسرائيله ته دَ خداوند الله خپل په لوري وګرځه ځکه چه ته
۲ دَ خپلي بدکارۍ په سبب وپرتلي ۲ تاسو له کلمي سره دَ خداوند
په لوري وګرځئ او هغه ته ووايئ چه ټولي بدکارۍ پورته
کړه او مونږ په مهربانۍ سره قبول کړه نو به مونږ دَ خپلو شونډو
۳ سخي نذر کړو ۳ آسور به مونږ ته خلاصي رانه کړي په آسونو به
سواره نه شُو دَ خپلو لاسونو کارونو ته به هيچري ونه وايُو چه
تاسو څمونږ معبودان يئ ځکه چه هم له تا نه يتيمان رحمت مومي
۴ ۴ زه به ياغيولي ته شفا ورکړم زه به په ښه زړه سره په هغو
۵ مينه وکړم ځکه چه څما غصّه له هغو نه پورته شوه ۵ زه به دَ
اسرائيل دَپارَ دَ شبنم په شان شم هغه به دَ سوسن په شان
۶ وغوړيږي او دَ لُبنان په څير به خپلي ولبيي وغورزوي ۶ دَ هغه
ښاخونه به وغوړيږي او دَ زيتون دَ ونې په شان به ښائسته او
۷ دَ لُبنان په طور به خوشبويه وي ۷ هغه خاق چه دَ هغه تر سيورې
لاندِ اوسي بيرته به وګرځي هغوي به دَ غنمو په دود شنه زرغونه
وِي او دَ تاک په څير به وغوړيږي دَ هغو شهرت به دَ لُبنان دَ
شرابو په څيروِي افرائيم به ووايي چه څما له بتانو سره بياځه کار
۸ دَي ۸ ما هغه ته ځواب ورکړي دي اونظربه پري وکړم زه دَ سرو
۹ غوندِ شنه ونه يم څما په سبب ته برېالي شوي ۹ کوم دانا دَي
چه په دي خبري پوه شي او اهلِ دل څوک دَي چه په دغو
و پوهيږي ځکه چه دَ خداوند لاري سمي دِي او نيکان خلق
پري دروَمي مګر نافرمان به په کښې پريوزي ❊

# دَ يوئيل نبي کتاب

## اول باب

١ دَ خداوند کلام چه يوئيل زوي دَ پتوئيل ته ورسيده ٢ اي زړو ١، ٢
دا واوريئِ او دَ زمکي ټولو اوسيدونکيو غوږونه کيږديئِ داسي څه ستاسي
په ورځو کښ يا ستاسي دَ پلرونو او نيکونو په ورځو کښ کله شوي
وُو ٣ تاسي خپل اولاد ته دَدغه ذکر وکړيئِ او دَ تاسي اولاد دِ ٣
خپل اولاد ته او دَ هغو اولاد دِ بلي پيړيَ ته ٤ چه هغه څه چه ٤
له چيچونکي ملخ نه پاتي شول هغه بياباني ملخ وخوړل او هغه څه
چه له بياباني ملخ پاتي شول هغه ځښونکي ملخ وخوړل او هغه څه
چه له ځښونکي ملخ نه پاتي شول هغه نغړونکي ملخ وخوړل
٥ اي کيفيانو ويښ شيئِ او وژاړيئِ اي تاسي ټولو چه شراب څښيئِ ٥
دَ نويو شرابو دَپارَ هَي هَي وکړيئِ ځکه چه هغه ستاسي له خولي
نه رانيولي شول ٦ دي دَپارَ چه يو قوم ځما په زمکي راوختو هغه ٦
زوراور او بي شماره دَي او غاښونه ئي دَ ببر زمري غاښونه دِي او
داړي ئي دَ لوي زمري دِي ٧ هغو ځما تاک ويجاړ کړي دَي ځما دَ انځر ٧
دَ ونې پوست ئي لوړولي دَي هغه لغړه کړه وئي غورزوله او
ښاخونه ئي سپين واچول ٨ تاسي وير کويئِ لکه چه پيغله دَ خپلي ٨
ځوانئِ دَ ميړه دَپارَ شيرېئِ اغوستي وِي ٩ او هديه او دَ څښلو ٩
نذر دَ خداوند له کور نه پريکړي شول کاهنان چه خدمتګذار
دَ خداوند دِي وير کوِي ١٠ پټي ويجاړ شول زمکه وير کوِي چه ١٠
غله خرابه شوه نوي شراب وچ شول تيل ضايع شول ١١ اي دهقانانو ١١
شرمنده شيئِ او اي دَ تاکستان باغوانانو هَي هَي کويئِ دَ غنمو او
دَ اوربشو په سبب ځکه چه دَ پټي فصل ورک شه ١٢ تاکونه ١٢

وچ شول دَ انځیر وني مړاوي شولي دَ انارو او دَ خرما او دَ
مڼي وني هم دَ ورشو ټولي وني مړاوي شولي هم دَ بني آدم له منځ
۱۳ نه خوښي هم مړاوي شوه ۱۳ اي کاهنانو ملاوي وتړئ وير کوئ
اي دَ مذبح خدمت کونکیو تاسي هَی هَی کوئ اي څما دَ الله خادمانو
تاسو ننووزئ ټوله شپه شیړئ اغوستي تیره کړئ څکه چه هدیه او
۱۴ دَ څکلو نذر ستاسو دَ الله له کور نه منع شوي ۱۴ تاسي روژي
مقدسه کانړئ پاکه جرګه راوبولئ سپین ږیري او دَ زمکي ټول اوسیدونکي
دَ خداوند الله خپل وکور ته جمع کړئ او دَ خداوند دَ وړاندِ
۱۵ ناري کوئ افسوس دَ دي ورځي په سبب ۱۵ څکه چه دَ خداوند ورځ
نژدي ده او لکه چه دَ قادرِ مطلق له لوري لوي هلاکت کیده نو
۱۶ هسي به راشي ۱۶ دَ مونږ دَ سترګو دَ وړاندِ خوراک هم څمونږ دَ الله
۱۷ له کور نه خوشي او خوشحالي پریکړي نه دي څه؟ ۱۷ غله تر لوټي
دَ لاندِ سخا شه درمندان خراب پراته دي کندوان مات شوي دي
۱۸ څکه چه غله وچه شوه ۱۸ چارپایان څرنګ آهونه کوي او دَ غواو
او دَ غوایانو پادي په ترس کښ شوي دي څکه چه دَ هغوي دَ پار
۱۹ څراګاه نشته ده هم دَ میږو رمي هم ورکي شوي ۱۹ اي خداوند زه
ستا دَ وړاند فریاد کوم څکه چه اور دَ بیابان څراګاهي نغړلي دي او
۲۰ لنبي دَ پټیو ټولي وني سیځلي دي ۲۰ دَ ورستو څناوران هم تا ته
مشتاق دي څکه چه دَ اوبو تویونه وچ شول او اور دَ بیابان
څراګاهي وخوړلي *

## دویم باب

۱ ۱ په صیحون کښ توري ووهئ څما په مقدس غره باندِ چغي ووهئ
دَ زمکي ټول اوسیدونکي دِ ورېږدي څکه چه دَ خداوند ورځ رادرومي
۲ څکه چه نژدي ده ۲ دَ تیاري او دَ تاریکي ورځ دَ توري اوریځي او
دَ ګڼي اوریځي ورځ لکه چه دَ صباح روښنائي په غرونو باندي

وغورېږي يو قوم لوي او زوراور دَي چه نه دا هسي وراندِ چرې
۳ شوي وه او نه به تركالونو پوري پېړۍ په پېړۍ بيا وشي ۳ دَ هغو
دَ وراندِ وراندِ يو اور دي چه خورل كوي او دَ هغو په وروستو
وروستو يوه لنبه دَه چه سيځل كوي دَ هغو دَ وراند زمكه دَ باغ
عدن په دود دَه او دَ هغو دَ وروستو يو ويران بيابان دَي هو
۴ له هغو هيڅ خلاص شوي نه دي ۴ دَ هغو ليدنه دَ اسونو دَ ليدلي
۵ په دود ده او دَ سوارو په شان زغلي ۵ دَ غرونو په څوكو باندِ دِ
كاڼيو دَ كړېدلو په شير دانكي لكه لنبه دَ اور چه خس خوري
هغوي دَ يوه زوراور قوم په دود چه دَ جنكيدلو دَپار صف تړي
۶ ۶ دَ هغو دَ وراندِ خلق ترهيږي هو دَ ټولو دَ څهرو رنګ تغيّر كيږي
۷ ۷ هغوي دَ پهلوانانو په شان زغلي دَ جنكي څوانانو غوندِ په ديوالونو
باندِ خيژي او هريو په خپلي خپلي لاري باندِ درومي او خپل صفونه
۸ نه ماتوي ۸ هغوي يو بل ته تيل وهي هرڅوك په خپلي خپلي لاري درومي
۹ او دَ وسلي په منځ كښ پروځي نو هم نه ماتيږي ۹ هغوي به ترِلي
وهي به ديوالونو زغلي به كورونو خيژي دَ غلونو په دود به كړكيو
۱۰ ورننوزي ۱۰ دَ هغو دَ وراندِ زمكه رپيږي آسمان ترهيږي نمر او
سپوږمۍ تاريك كيږي ټول ستوري له خپلي روښنائۍ وركولو ستنيږي
۱۱ او يهوه به دَ خپل لښكر دَ وراندِ خپل آواز وركړي ځكه چه
دَده دَ لښكر ځاي ډير لوي دَي ولي چه دي عظيم دَي چه دَ خپل
كلام عمل كونكي دَي ځكه چه دَ خداوند ورځ ډيره لويه دَه او
۱۲ بي اندازه خوفناكه ده څوك دَ هغي زغم كولي شي ۱۲ بس خداوند
فرمايي اوس تاسي په خپل ټول زړه سره راوګرزئ په روژي او وير
۱۳ او زاري سره ۱۳ او خپل زړه وځيرئ نه چه خپلي جامي او دَ يهوه
الله خپل په لوري وګرزئ ځكه چه دَي زړسواند او رحيم دَي په
قهر كولو كښ صابر او ډير مهربان دي او په بدي ارمان كوي

۱۴ ۱۴ څوک پوهیږي چه دئ به ګرزي او ارمان به وکړي او په وروستو
خپل یو برکت پریږدي چه د خداوند الله خپل دپاره یوه د څکلو
نذر او هدیه وي
۱۵ ۱۵ په صیحون کښ تورئ ووهئ او یوه روژه مقدّسه کړئ
۱۶ او د مقدّس جماعت منادي وکړئ ۱۶ تاسو خلق جمع کړئ جماعت پاک
کانړئ سپین ږیري یو ځای کړئ هلکان او پئ خوړونکي هم راټول کانړئ
زلمي د له خپلي کوټنړئ نه او ناوي د له خپلي حجلي نه باهر راشي
۱۷ ۱۷ کاهنان خلق د خداوند خادمان د د منډو او د قربانګاه په منځ
کښ وژاړي او و د واپي چه اي خداونده په خپلو خلقو شفقت وکړه
او د خپل میراث سپکي ته مه ورکوه هسي نه چه غیر قومونه په هغو
حکومت وکړي هغوي د د قومونو په منځ کښ څله وواپي چه د هغو
الله چرته دي
۱۸ ۱۸ هغه وقت خداوند لره په خپلي زمکي غیرت وشه او ده
۱۹ به پخپلو خلقو زړه سوي وکړ ۱۹ بلکه خداوند خپلو خلقو ته ځواب
ورکړ او ورته ئي وویل چه ګورئ زه به ستاسي دپاره غلّه او نوي شراب
او تیل واستوم چه تاسي به په هغو ماړه شئ او زه به تاسو بیا په
۲۰ غیر قومونو کښ رسوا نه کړم ۲۰ او بي له دي به د قطب وال به له تاسي
لري کړم او په هغي وچي ویراني زمکي کښ به ئي وشړم د هغه مخه
وړاند به د مشرق په سمندر کښ او د هغه وُرستار به د مغرب په
سمندر کښ او د هغه به بدبوي پورته شي او د هغه سخا بوي به
۲۱ پورته شي څکه چه هغه لویه ګستاخي کړي ده ۲۱ اي زمکي مه ډاریږه
۲۲ خوښي او خوشحالي کوه څکه چه خداوند لوي کارونه کړي دي ۲۲ اي
د ځنګل چارپایانو مه ترسیږئ څکه چه د بیابان څراګاهي زرغونی کیږي
۲۳ او ونې خپله میوه ورکوي انځیر او تاک خپل قوّت ورکوي ۲۳ نو اي
د صیحون اولاده تاسي خوښ شئ او په خپل خداوند الله خوښي کوئ

ځکه چه دَي به ورښني باران په برابرِي سره تاسي ته وبخښي بلکه
ستاسي دَپارَ دَ زور باران واورِوي وړاندِنئ او ورستونئ باران
تاسي ته کوز کړي لکه چه وړاندِ کيدل ۲۴ او درمندونه به له غنمو ۲۴
ډک شِي او ټول حوضونه به له نويو شرابو او له تيلو ډک شِي
۲۵ او دَ هغو کالونو حاصل چه هغه به بياباني ملخانو او څمټونکيو ۲۵
ملخانو او نغړونکيو ملخانو او چيچونکيو ملخانو يعني هغه لوي فوج
چه ما ستاسو منځ ته در استولي وه پسته درکړم ۲۶ او تاسي به ۲۶
ئي په خوړلو وخورئ او ماړه به شئ او دَ خپل خداوند الله دَ
نامه چه له تاسو سره ئي عجائب سلوک وکړ ثنا به وکړئ او څما
خلق به هرګز شرمنده نه شِي ۲۷ نو تاسي به پوه شئ چه زه دَ ۲۷
اسرائيل په منځ کښ يم او چه زه يهوه ستاسو الله يم او بي
له ما بل هيڅوک نشته دَي او څما خلق به هيڅري شرمنده نه شِي
۲۸ او پس له دي به داسي وشي چه زه به خپل روح په ټول بشر ۲۸
توي کړم او ستاسي زامن او لونړي به نبوّت کوِي او ستاسي
زاړه به خوبونه وينِي او ستاسي ځوانان به رؤيتونه ۲۹ بلکه زه به ۲۹
خپل روح به هغو ورځو کښ په غلامانو او په وينځو هم توي کړم
۳۰ او زه به په آسمانونو او په زمکو عجائبات ظاهر کړم ويني او اور ۳۰
او دَ لوګي ستنيه ۳۱ نمر به تاريک او سپوږمئ به ويني شِي پخوا له ۳۱
هغه چه دَ خداوند لويه او خوفناکه ورځ را رسي ۳۲ او داسي به ۳۲
وشِي چه هرڅوک چه دَ خداوند په نوم بلنه کوِي نو آزادِي به مومي
چه دَ صيحون په غره او په اورشليم کښ لکه چه خداوند فرمايلي
دِي دَ هغو باقيو په منځ چه خداوند بولي خلاصون وِي ❊

## دريم باب

۱ او ګوره په هغو ورځو کښ او په هغه وقت کښ چه دَ يهوداه ۱
او دَ اورشليم بنديان بيرته راولم ۲ نو به ټول قومونه يوځاي کړم ۲

اوَ یهوشافاط په خوړي کښ به ئي لاندِ راولم او هلته کښ به
په هغو باندِ ځما اُمّت او ځما دَ میراث اسرائیل دَپارَ چه دغه
هغوي دَ قومونو په منځ کښ پراګنده کړ او ځما زمکه ئي ځبله
۳ وویشله دعوىٰ ثابته کړم ۳ هو هغوي ځما په خلقو هسک واچاوه
او دَ یوي کسبي په بدل کښ ئي یو هلک ورکړ او دَ شرابو دَپارَ
۴ یوه جنګۍ خرڅه کړه تا چه و ئي څښي ۴ بیا ستاسو له ما سره
څه کار دَي اي دَ صور او دَ صیدا او دَ فلسطیانو ټولو اطرافو
تاسو به ما ته بدله راکړئِ څه ؟ اوکه ئي راکړئِ نو زه به زر په
بیره سره ستاسي بدله ستاسي په سرونو باندِ بیرته دروغورزوم
۵ ۵ ځکه چه تاسي ځما سپین او سره زر واخستل او ځما ګران
۶ او قیمتي څیزونه مو په خپلو بتخانو کښ ننه یستل ۶ او تاسي بني
یهوداه او بني اورشلیم په بني یونانیانو خرڅ کړي دِي تا چه دوي
۷ دَدوي له سرحدونو نه لرِي کړئِ ۷ ګورئِ زه به هغوي ته له هغه
ځاي نه چه هلته کښ تاسو خرڅ کړي دِي ولمسوم او ستاسو بدله
۸ به ستاسو په سرونو درو‌ګرزوم ۸ او ستاسي زامن او لوڼي به
هم دَ بني یهوداه په لاسونو خرڅ کړم او دوي به هغوي دَ سبائیانو
په لاس چه په لري وطن کښ دِي خرڅ کړي ځکه چه دا خداوند
فرمايلي دِي
۹ ۹ دَدي (خبري) منادِي په غیر قومونو کښ وکړئِ دَ جنګ طیارِي
وکړئِ پهلوانان بیدار کانړئِ ټول جنګي ځوانان دِ حاضر شِي هغوي
۱۰ دِ را وخیژي ۱۰ دَ خپلي یوي سسپارونه توري جوړي کړئِ او لورونه برچې
۱۱ ناتوان دِ ووایي چه زه زوراور یم ۱۱ اي دَ شا اوخوا ټولو قومونو
تاسي راشئِ بیره وکړئِ راجمع شئِ اي خداوندَ داسي وکړه چه ستا
۱۲ پهلوان هلته کوز شِي ۱۲ غیر قومونه دِ بیدار شِي او دَ یهوشافاط
په خوړي کښ دِ وخیژي ځکه چه زه به هلته کښ جلسه وکړم

تا چه دَ څلورو خواوَ دَ غیر قومونو عدالت وکړم ۱۳ لور ولګوه ځکه ۱۳
چه فصل پوخ شوي دَي راشئ دربې کوئ ځکه چه چرخشت ډک
شوي دَي او ټول حوضونه مالامال شوي دِي ځکه چه دَ هغوِ شرارت
ډیر دَي ۱۴ ټولي ټولي دَ عدالت په خوړي کښ ځکه چه دَ خداوند ۱۴
ورځ دَ عدالت په خوړي کښ را نژدي ده ۱۵ نمر او سپوږمۍ به تاریک ۱۵
شِي او ستوري به خپلي روښنائي بند کړي ۱۶ ځکه چه خداوند به ۱۶
له صیحونَ وغړنبیږي او له اورشلیم نه به خپل آواز ورکړي او
آسمان او زمکه به وریږدي لیکن خداوند به دَ خپلو اُمت پناه
او دَ بنیاسرائیل محکمه قلا وِي ۱۷ نو تاسي به پوه شئ چه زه ۱۷
خداوند ستاسي الله یم چه دَ صیحون ځما په پاک غره کښ اوسم
نو هغه وقت به اورشلیم پاک وِي او بیګانه خلق به هیڅري دَ
هغه په منځ کښ تیر نه شِي ۱۸ او هغه ورځ به داسي وشِي چه ۱۸
غرونه به نوي شراب وڅڅوِي او غونډِي به پئ وبهوِي او دَ یهوداه
ټول کاریزونه به اوبه وبهوِي او دَ خداوند له کور نه به یوه
چینه جارِي شِي او دَ شِټیم خوړه به اوبه کړي ۱۹ مصر به یوه ۱۹
ویرانه شِي او ادوم به یو ویجاړ بیابان جوړ شِي دَ هغه ظلم
په سبب چه دوي په بني یهوداه وکړ چه دوي دَ هغوي په مُلک
کښ دَ بیګناهو ویني توئي کړي ۲۰ لیکن یهوداه به مدام آباد وِي ۲۰
او اورشلیم به هم پیړئ په پیړئ ۲۱ ځکه چه زه به دَ هغوي ویني ۲۱
پاکي کړم چه ما پاکي کړي نه دِي چه خداوند په صیحون کښ
اوسي ٭

# دَ عاموس نبي کتاب

## اول باب

۱ ۱ دَ تقوع له شپنو نه دَ عاموس خبري چه ده دَ یهوداه دَ بادشاه عزیاه په
ورځو کښې او دَ اسرائیل دَ بادشاه یروبعام ځوي دَ یواش په ورځو کښې
۲ دَ اسرائیل په باب دَ زلزلې له راتلو نه دوه کاله وړاندې ولیدلې ۲ او ده
وُوِ چه خداوند له صیحونَ به وغړنبیږي او له اورشلیمَ خپل آواز ورکوي
۳ او دَ شپنو څراګاهي وِیرکوي او دَ کرمل څوکې وچیږي ۳ خداوند داسي فرمائي
چه دَ دمشق دَ دریو تقصیرونو دَپارَ هو دَ څلورو په سبب به زه ور نه
۴ و نه ګرزم ځکه چه هغوي جلعاد دُ اوسپنو په څپرونو سره موږلي دي ۴ نو زه به
دَ حزائیل په کور کښې یو اور واستوم هغه به دَ بن هداد محلونه وخوري
۵ ۵ او زه به دَ دمشق ارم مات کړم او دَ بقعتِ آوِین کښېناستونکي او هغه
چه دَ بیتِ عدن دَ کور امسا ئې اخستي دَه پرې به ئې کړم او دَ آرام خلق
به په بند سره قیر ته لاړ شي خداوند فرمائي
۶ ۶ خداوند داسي فرمائي چه دَ غزاه دَ دریو تقصیرونو دَپارَ هو دَ
څلورو په سبب به زه ور نه و نه ګرزم ځکه چه دوي بندیان په پوره
۷ شمار سره بیولي دي چه آدوم ته ئې وسپاري ۷ نو زه به دَ غزاه په
۸ ښهرپناه یو اور واستوم چه دَ هغه محلونه وخوري ۸ او دَ اُشدود
کښېناستونکي او هغه چه دَ اسقلون امسا ئې آخستي دَه پري به ئې
کړم او خپل لاس به په عقرون بیا وګرزوم او دَ فلستیانو باقیه به
نیست شي خاوند یهوواه فرمائي
۹ ۹ خداوند داسي فرمائي چه دَ صور دَ دریو تقصیرونو په سبب
هو دَ څلورو په سبب به زه ور نه نه وګرزم ځکه چه دوي بندیان په
پوره شمار سره و ادوم ته وسپارل او دَ ورورګلوي عهد ئې یاد نه کړ نو

١٠ زه به دَ صورَ په ښهرپناه يو اور واستوم چه دَ هغه محلّونه به وخوري
١١ ﴿١١﴾ خداوند داسي فرمايي چه دَ آدوم دَ دريو تقصيرونو په سبب
هو دَ څلورو په سبب زه به ورنه نه وګرزم ځکه چه ده له توره سره
په خپل ورور پسي شه او خپل رحمتونه يې خراب کړل او دَده غصّه
١٢ مدام څيرونکي ده او ده خپله غصّه هميشه ساتله ﴿١٢﴾ نو زه به په تيمان
باندِ يو اور واستوم او هغه به دَ بصراه محلّونه وخوري
١٣ ﴿١٣﴾ خداوند داسي فرمايي چه دَ بني‌عمون دَ دريو تقصيرونو دَپارَ
هو دَ څلورو په سبب زه ورنه نه وګرزم ځکه چه دوي دَ جلعاد
١٤ حاملي ښځي کړي دي دَپارَ چه خپل سرحدونه ارت کړي ﴿١٤﴾ نو زه به
دَ رباه په ښهرپناه باندِ يو اور بل کړم چه دَ هغه محلونه به وخوري
او دَ جنګ به ورځ په نارو سره او دَ ګردباد په ورځ له طوفان سره
١٥ او دَ هغو بادشاه بلکه هغه به له خپلو اميرانو سره يو ځاي په
بند لاړ شي خداوند فرمايي ❊

## دويم باب

١ ﴿١﴾ خداوند داسي فرمايي چه دَ موآب دَ دريو تقصيرونو دَپارَ هو دَ
څلورو په سبب به زه ورنه نه وګرزم ځکه چه ده دَ آدوم دَ
٢ بادشاه هډوکي و سيزل چونه يې کړل ﴿٢﴾ نو زه به په موآب باندِ يو اور
واستوم او هغه به دَ قريوت محلّونه وخوري او موآب به په شورماشور
٣ کولو او په ناري وهلو او په نوريِ غږولو مړ شي ﴿٣﴾ او زه به قاضي هم
دَ هغه له منځ نه پريکړم او زه به دَ هغه ټول اميران له هغه
سره قتل کړم خداوند فرمايي
٤ ﴿٤﴾ خداوند داسي فرمايي چه دَ يهوداه د دريو تقصيرونو دَپارَ
هو دَ څلورو په سبب به زه ورنه و نه ګرزم دي دَپارَ چه هغوي دَ
خداوند تورِيت رد کړي دَي او دَ هغه حکمونه يې و نه ساتل او
دَ هغوي دروغژنو چه دَ هغو پيروي دَ دوي پلرونو او نيکونو کړي وه

گمراه کړي دِي ۵ نو زه به په يهوداه باندِ يو اور واستوم او هغه به ۵
دَ اورشليم محلونه وخوري

۶ خداوند داسي فرمايي چه دَ اسرائيل دَ دريو تقصيرونو دپارَ هو ۶
دَ څلورو په سبب به زه ورنه ونه گرزم ځکه چه هغوي په روپيو باندِ
صادق ۷ او په يوي جوړي پيزو ئي مسکين خرڅ کړ دَهغه گرد هم چه دَ ۷
مسکينانو په سر باندِ وِي طمع کوِي او دَ غريبانو لار اړوِي او يو سړي
او پلار ئي يوي جنکۍ ته ورځي تا چه زما پاک نوم پليت کړي ۸ او دوي ۸
دَ هر مذبح څنګه په هغو جامو باندِ چه گروِي دي څملي او دَ خپلو
خدايانو په کور کښ هغه شراب چه له مجرمانو ئي اخستلي دِي څښي -
۹ نو هم ما خو دَ هغو له وړاندِ اموري نيست کړي دِي چه دَ هغو اوچتوالي ۹
دَ يو نشترو دَ اوچتوالِي په دود وه او دَ بلوط دَ وني په شان مضبوط
وو هو ما له پاس دَ هغو ميوه او له لاندِ نه مِ دَ هغه ولي بربادي کړي
۱۰ او هم ما تاسو دَ مصر له زمکي را وخيژولي او تر څلويښتو کالونه مِ په ۱۰
بيابان کښ تاسو بوتللي چه تاسو دَ اموريانو زمکه په خپل ميراث کښ
واخلئ ۱۱ او ما ستاسو له زامنو نه نبيان او ستاسو له ځوانانو نه نذيران ۱۱
ودراول دا هسي نه دَه څه؟ اي بني اسرائيلَ خداوند فرمايي ۱۲ مگر تاسو ۱۲
په نذيرانو شراب وڅښل او نبيانو ته مو په تاکيد سره ووِچه نبوت مه کوئ
۱۳ گورئ زه به مو دَ لاندِ داسي ښکيمندم لکه چه گاډئ ښکيمندي چه ۱۳
په هغي باندِ ډير کيدي ليښلي وِي ۱۴ نو له گرندي تلونکي به دَ تښتيدلو ۱۴
طاقت لاړ شي او زورآور به خپل زور مضبوطولي نه شي او
ميړني به خپل ځان خلاصولي نه شي ۱۵ او لندي ځکونکي به نه ۱۵
و دريږي او نه به گرندي پښي وال به خپل ځان خلاص کړي او نه
به هغه چه په آس باندِ سوار وِي خپل ځان خلاص کړي ۱۶ او په ۱۶
هغه ورځ هغه چه له پهلوانو نه دلاور وِي لوڅ لغړ به وتښتي
خداوند فرمايي ✠

# دریم باب

۱ ۱ اي بني اسرائیلو دا خبره واورئ چه خداوند ستاسو په مخالفت کښ فرمایلي
ده دَ هغه ټول قوم په مخالفت چه ما دَ مصر له زمکي رایستلي دي -
۲ ۲ هغه ووِ چه دَ زمکي له ټولو ټبرو نه مِ تش تاسو پېژندلي يئ دي
۳ دپارَ به زه تاسو ته ستاسو دَ ټولو بدکاریو سزا درکړم ۳ که چري دوه
۴ سړي سره اتفاق نه وي نو یوځاي به سره لاړ شي څه؟ ۴ ببر زمري به
په ځنګل وغرېږي چه ښکار ئې (موندلي) نه وي او که ځوان ببر زمري
۵ څه نیولي نه وي نو له غار نه به خپل آواز هسک کړي ۵ کومه مرغۍ
په زمکي باندِ په دام کښ نښلي څه؟ چه دَ هغي دپارَ دام لګولي شوي
نه وي؟ دام به تر هغه پوري چه څه نه څه په ده کښ نښتلي نه وي
له زمکي به واخست شي څه؟ په ښهر کښ به تورئ وغږوله شي
۶ څه؟ او خلق به نه وربېږي څه؟ ۶ بلا به په ښهر کښ وشي چه خداوند
۷ هغه جوړه کړي نه وي څه؟ ۷ په یقین سره به خداوند یهوَه هیڅ کار
و نه کړي مګر چه دَي خپل راز په خپلو خدمتګارو نبیانو ظاهر
۸ کړي ۸ ببر زمري غرچېدلي دي څوک دَي چه نه به و ترسیږي خداوند
الله فرمایلي دِي څوک دَي چه نبوّت به و نه کړي
۹ ۹ تاسو دَ اشدود په محلونو کښ او دَ مصر دَ زمکي په محلونو
کښ منادي وکړئ او ووایئ چه دَ سمرون په غرونو خپل ځان جمع کړئ
او هغه لويه غلبه چه دَ هغه په مینځ کښ کیږي او ظلمونه چه دَ هغه
۱۰ په منځ کښ دی وګورئ ۱۰ ځکه چه هغوي په راستي کولو نه پوهیږي
خداوند فرمايي هغه چه په خپلو محلونو کښ دَ ظلم او دَ لوټ انبار
۱۱ کوي ۱۱ دي دپارَ خاوند یهوَه داسي فرمايي چه هغه زمکه به یو دښمن
ګیر کړي او ستا قوّت به درنه کوز کړي او ستا محلونه به لوټ کړي شي
۱۲ ۱۲ خداوند داسي فرمايي لکه چه شپون دوه لینګي یا دَ غوږ ټکړه دَ ببر
زمري له خولي نه راکاږي هم هسي بني اسرائیل چه په سمرون کښ دَ

۱۳ پلنګ په ګوښي کښې او دَ دمشق په کټ کښيني را وکاږلي به شي ۱۳ تاسو
واورئ او دَ يعقوب په ټبر ګواهي ولئ خاوند يَهوَه الله دَ لښکرو
۱۴ فرمايي ۱۴ چه زه په هغې ورځې چه دَ اسرائيل دَ تقصيرونو سزا ير
راوړم نو به دَ بيت‌ايل مذبحونه ته هم سزا ورکړم بلکه دَ مذبح
۱۵ ښکرونه به پريکړي شي او هغوي به په زمکي پريوزي ۱۵ او زه به دَ
ژمي کور دَ ووړي له کور سره و وهم او دَ هاتي دَ غاښ کونه به هم
ويران شي او لوي لوي مکانونه به و نړيږي خداوند فرمايي ٭

## څلورم باب

۱ آ اي دَ بسن غواؤ چه دَ سمرون په کوهستان کښې يئ او غريبان ربړوئ
او مسکينان دربلئ او خپلو مالکانو ته وايئ چه راوړئ موږ به وڅښو
۲ نو تاسو داخبره واورئ ۲ خداوند الله په خپلي پاکئ قسم خوړلي دَي
چه ګورئ هغه ورځي به په تاسو راشي چه په هغو کښې به تاسو په
۳ ښکو سره او ستاسو اولاد په کونډو سره يوسي ۳ او له تاسو به
هره يوه له هغو چودو نه چه دَ هغي په مخ کښې وي ووځي هو تاسو
به په حرمون کښې خپل ځانونه و غورزوئ خداوند فرمايي
۴ ۴ په بيت‌ايل راشئ او تقصير کوئ په جلجال کښې او ډير
تقصيرونه وکانړئ او هر صباح له خپلي قرباني راوړئ او هر يو دريمه
۵ ورځ خپل عشرونه ګذارئ ۵ او دَ شکراني هديي له خميري سره په اور
باندي کړئ او دَ نفلو هديو منادي وکړئ او واورئ ځکه چه داټول کارونه
۶ ستاسو خوښ دي اي بني‌اسرائيل خاوند يَهوَه فرمايي ۶ او ما هم
ستاسي په ټولو ښهرو کښې دَ غاښونو صفائي او ستاسو ټولو هر مکانو
کښې دَ ډوډئ کموالي درکړي دَي په دي هم تاسو ځما په لوري ګرزيدلي نه
۷ ئ خداوند فرمايي ۷ او ما هم باران چه دَ فصل په پخيدلو کښې تشي
دري مياشتي پاتي وي منع کړي دَي له تاسو نه او ما په يوه ښهر
واوراوه او په بل ښهر نه واوراوه په يوي ټکري زمکه باران واوريده

٨ او دَ بلي تکري چه باران پرې و نه اوريده وچه شوه ٨ نو دوه دري وړې
کلي ته وتيريدل چه اوبه وڅښي ليکن ماړه نه شول په دي هم تاسو
٩ خما په لوري و نه ګرزيدلئِ خداوند فرمائي ٩ بيا مِ تاسو په بادِ مشرقي او
په زرنړه ووهلئِ او ستاسو ډير باغونه او تاکستانونه اودَ انځير وني
او دَ زيتون وني ملخانو خوړلي دِي په دي هم تاسو خما په لوري راو نه
١٠ ګرزيدلئِ خداوند فرمائي ١٠ ما لکه چه په مصر و شول وبا ستاسي په منځ
کښ استولي دَه بيا مِ ستاسو ځوانان ستاسو له بنديوانو آسونو سره په
توري ووژلي دِي او ستاسو دَ لښکر دَ ځاي بدبوئي ستاسو په سپږمو
کښ مِ وخيژوله په دي هم تاسو خما په لوري نه را و ګرزيدلئِ خداوند
١١ فرمائي ١١ ما ځني له تاسو واړول لکه چه الله سدوم او عموراه واړول
او تاسو دَ هغي شوشئِ په شان شوئِ چه له بليدلو نه په دي هم
١٢ تاسو خما په لوري نه را و ګرزيدلئِ خداوند فرمائي ١٢ دي دَپارَ اي اسرائيل
زه به له تاسره داسي وکړم او هرکله چه زه له تاسره داسي وکړم
١٣ نو اي اسرائيلَ ته دَ خپل الله دَ ملاقات طياري وکړه ١٣ ځکه ګوره دَي
هم هغه دَي چه غرونه جوړوي او باد پيدا کوي اوچه سړي ته
دده فکر ور ښئي او صباح تياره کوي او دَ زمکي په لوړو دربي
کوي دَ هغه نوم خداوند الله دَ لښکرو دَي ✣

## پنځم باب

١ ١ اي دَ اسرائيل تبره دغه خبره چه زه ئي په تاسو پورته کوم بعني
٢ دغه وير واورئِ ٢ دَ اسرائيل پيغله پريوتله بيا به پورته نه شي هغه
٣ په خپلي خاوري پرته دَه هيڅوک نشته دَي چه بيا ئي پورته کړي ٣ ځکه
چه خداوند الله داسي فرمائي هغه ښهر چه زر به ور نه وتل نو په
هغه کښ به دَ اسرائيل دَ تبر دَپارَ سل پاتي شي او له هغه چه
سل به ور نه وتل لس به پاتي شي
٤ ٤ ځکه چه خداوند دَ اسرائيل و تبر ته داسي فرمائي چه

تاسو څما طلب کوئ نو تاسو به ژوندي شئ ٥ مګر د بیت‌ایل طلب ٥
مه کوئ او په جلجال کښې مه ننوزئ او بیر سبع ته مه ور تیرېږئ ځکه
چه جلجال به په بند لار شي او بیت‌ایل به ناڅيز شي ٦ تاسو د خداوند ٦
طلب کوئ نو به تاسو ژوندي شئ هسې نه چه هغه د یوسف په کور
کښې د اور په دود بل شي او و ني خوري او په بیت‌ایل کښې د هغه
مړکونکي هیڅوک نه وي ٧ اي تاسو چه عدالت په مستیاري بدل کوئ او ٧
صداقت په زمکي غورزوئ ٨ هغه (لټوئ) چه پروونی او جبار جوړوي او ٨
چه د مرګ سیوري صباح کوي او ورځ په شپي تیاره کوي او د قعر دریاب
او به رابولي او د زمکي په مخ يې تویوي د ده نوم خداوند دی ٩ هغه ٩
چه په زوراورو یو ناګهاني هلاکت راوړي هسې چه په محکمي قلا باندي
خرابي راځي ١٠ دوي له هغه سره کینه لري چه په دروازي باندي طعنه ١٠
کوي او دوي له هغه نفرت کوي چه حقه خبره وايي ١١ نو دې د پاره چه ١١
تاسو مسکینان پایمال کوئ او د غنمو هدیي ورنه اخلئ تاسو مکانونه
له تراشلیو کاڼیو بنا کړي دي مګر په هغو کښې به نه واوسئ او تاسو
ښائسته تاکستانونه لګولي دي لیکن د هغه شراب به نه وڅښئ
١٢ ځکه چه زه ستاسو له ډیرو تقصیرونو او له لویو لویو ګناهونو خبر ١٢
یم اي تاسو چه صادقان ربړوئ او رشوت اخلئ او مسکینان له
دروازي شړئ ١٣ دې د پاره به په هغي زماني کښې هوښیار خاموش ١٣
به شي ځکه چه هغه بده زمانه ده ١٤ تاسو د نیکي طلب کوئ او د ١٤
بدي نه: دې د پاره چه تاسو ژوندي اوسئ او هم هسې به خداوند
د لښکرو له تاسو سره وي لکه چه تاسي وايئ ١٥ له بدي سره کینه ١٥
کوئ او له نیکي سره مینه کوئ او په دروازي عدالت ودروي ګنډ
خداوند د لښکرو الله د یوسف په باقیه مهرباني وکړي ١٦ دې د پاره ١٦
یَهُوَهْ الله د لښکرو خاوند داسې وايي چه په ټولو بازارو کښې به
ژړا وهل وي او هغوي به ټول په کوڅو کښې هي هو کوي او دهقانان

به دَ وِیرِ دَپارَ او هغوي چه په ویرکولو ماهر دِي وینا ته را و بولئِ
١٧ ١٧ او په ټولو انګورِي باغونو کښ به وِیر وِي ځکه چه زه به ستاسو په منځ
١٨ کښ تیر شم خداوند فرمايي ١٨ هَي هَي په تاسو چه دَخداوند دَ ورځي
آرزو لرئِ دَ خداوند ورځ تاسو ته څه ده هغه خو تاریکي دَه او رڼا
١٩ نشته ١٩ لکه چه سَړي له ببر زمري نه تښتي او په ېږ ملیا شي یا
٢٠ کور ته لاړ شي خپل لاس په دیوال کېږدي او مار ئي وچیچي ٢٠ دَ
خداوند ورځ به تاریکه نه وِي څه؟ او نور نشته بلکه ګڼږه تیاره به وِي
٢١ چه په هغي کښ رڼا نشته ٢١ زه ستاسي له عیدونه کینه کوم له هغو
٢٢ نفرت کوم او زه به ستاسو په جماعتونو خوښي و نه کړم ٢٢ او که تاسو
هرڅو سیزونکي قربانئِ او هدیي څما دَ وړاندِ تیري کړئِ نو هم زه به ئي
قبولي نه کړم او ستاسو دَ څربو څاروو دَ شکراني دَ هدیي په لوري
٢٣ به مخ نه کړم ٢٣ ته دَ خپلو سرودونو آواز څما له وړاندِ نه لري کړه
٢٤ ځکه چه زه به ستا دَ ربابونو نغمه وا نه ورم ٢٤ مګر عدالت دِ دَ اوبو
٢٥ په دود وبهیږي او صداقت دِ دَ مدامي رود په شان ٢٥ اي اهلِ اسرائیلَ
تاسو څما دَ وړاندِ تر څلویښتو کالو پوري په بیابان کښ ذبیحي او هدیي
٢٦ تیرولي څه؟ ٢٦ تاسي خو دَ خپل مولک خیمي او دَ خپل کیون او دَ
خپل معبود ستوري چه تاسو دَ خپل ځان دَپارَ جوړ کړلِ پورته کړل
٢٧ ٢٧ ځکه به زه تاسو په بند سره له دمشقَ پوري خوا ته بوزم هغه
چه نوم ئي خداوند الله دَ لښکرو دي فرمايي ✤

## شپږم باب

١ ١ هَي هَي په هغو چه په صیحون کښ بې‌پروا دِي او دَ سمرون په غره
کښ بې‌خوفه دِي چه دَ نورو قومونو مشهور سرداران دِي چه هغو
٢ ته دَ اسرائیلَ تبري ورځي ٢ تاسو کلنه ته پوري خوا لاړ شئِ او وګورئِ
او له هغه ځاي نه تر لوي حمات سیل وکړئِ نو دَ فلسطیانو په جته
کښ کوز شئِ هغوي له دي ملکونو ښه دي څه؟ او اطراف ئي ستاسو

۳ له اطرافو لوي دِي څه ؟ ۳ هَي هَي په هغو خلقو چه دَ بدو ورځو (خيال)
۴ لري کوِي او دَ ظلم کرسئ ورنږدې کوي ۴ چه دَ هاتي دَ غاښو په پلنګونو باندِ
څملي او په خپلو کټونو باندِ غوړيږي او له رمو نه ګډوري او له
۵ غوجلو نه سخي خوري ئي ۵ او دَ رباب دَ آواز سره پرته پرته سندري
وايي او دَ داؤد په شان دَ موسيقي سازونه دَ خپل ځان دَپارَ په فکر
۶ جوړوي ۶ او له پيالو نه شراب څښي او په خپل ځانونه باندِ خاص عطر
۷ مږي مګر دَ يوسف دَ شکسته حالي دَپارَ غم نه خوري ۷ دي دَپارَ به دوي
له ورمبو بنديانو سره به بند لاړ شي او دَده دَ لوي ميلمستيا مستي
۸ چه په آرام سره غزيږي و به شاره شي ۸ خاوند يَهوَوه په خپل ذات
قسم خوړلي دَي خداوند الله دَ لښکرو داسي فرمايي چه زه دَ يعقوب له
دبدبي نه نفرت لرم او دَده له محلونو سره مي کينه ده دي دَپارَ زه
۹ به هغه ښهر هَ هغو ټولو سره چه په هغه کښ دِي وسپارم ۹ بلکه
داسي به وشي چه که په کوم کور کښ لس سړي باقي پاتي شي نو هغوي
۱۰ به هم مړه شي ۱۰ او چه دَ چا تره چه دَده سيځونکي وي پورته به ئي کړي
تاچه دَ هغه هډونه له کور نه و باسي او هغه ته چه په اندروني کور
کښ دَي و به وايي چه تر اوسَ پوري له تا سره څوک شته هغه به
ووايي چه نشته نو به هغه ووايي چه چُپ شه دَ خداوند نوم دِ مونږ
۱۱ ذکر نه کړو ۱۱ ځکه ګوره خداوند حکم کوِي او دي به لوي کور ټوټي ټوټي
او وړوکي کورونه به چاودي چاودي کړي شي
۱۲ ۱۲ په کمره به آسونه وزغلي څه ؟ يا څوک به په غوايه سره هلته
کښ يوبه وکړي څه ؟ چه تاسو عدالت په افيمو او دَ صداقت ميوه په مستياري
۱۳ بدل کړل ۱۳ تاسو چه په ناڅيزونو فخر کوئ او وايئ چه مونږ دَ خپل ځان
۱۴ دَپارَ په خپل طاقت سره ښکر نه واخست څه ؟ ۱۴ مګر اي دَ اسرائيل خاوندانه
خداوند دَ لښکرو الله داسي فرمايي ګوره زه به په تاسو باندِ يو ټولي راوخيږوم
ع او تاسو به دَ حمات دَ ننوتلو له ځايه دَ بيابان تر ويالي پوري و ربړوي ٭

# اوم باب

١ آ خداوند الله ما ته داسي را ښکاره کړل او ګوره چه ده (دکروړي
دَ آخرو زرغونکو په شروع کښ ملخان پيدا کړل او ګوري هم هغه دَ
٢ دَ آخر زرغونکي وُو چه دَ بادشاه له ريبلو وروستو وشول ٢ او داسي
وشول چه هرکله چه دَ زمکي واښه ئې بالکلّ وخوړل نو ما وُوِ چه
اي خاوند يهوه زه ستا منّت کوم چه ته ئې معاف کړه يعقوب به
٣ څرنګ پورته شِي ځکه چه دَي وړوکي دَي ٣ له دي نه خداوند اسوېلي
وکړه او خداوند وُوِ چه دا به نه وِي
٤ ٤ نو خاوند يَهُوَهْ ما ته داسي را ښکاره کړي دِي او ګوره
چه خاوند يَهُوَهْ دَ مقدّمي دَپارَ اور را وباله او هغه لويه ژوره ئې
٥ ونغرله او يوه برخه ئې خوړله ٥ نو ما وُوِ چه اي خاوند يَهُوَهْ زه
ستا منّت کوم چه پرې ئې ږده يعقوب به څرنګ پورته شِي ځکه چه دي وړوکي
دَي له دي هم خاوند يَهُوَهْ وُوِ چه دا به هم نه وِي
٧ ٧ بيا ئې ما ته داسي را ښکاره کړل او ګوره چه خداوند
په يو دېوال چه په چاړول جوړ شوي وه ولاړ وه او چاړول مزي ئې
٨ په لاس کښ وه ٨ او خداوند ما ته وُوِ چه اي عاموسَ ته څه وينې
ما وُوِ يو دَ چاړول مزي خاوند وُوِ چه ګوره زه به يو دَ چاړول مزي
دَ خپل اُمّت اسرائيل په مېنځ کښ کېږدم او زه به بيا دَ هغو په لوري
٩ ورتېر نه شم ٩ او دَ اسحاق اوچت مکانونه به ويجاړ شِي او
دَ اسرائيل مقدّسونه به ويران شِي او زه به له توره سره دَ يروبعام
په کور به وخېژم
١٠ ١٠ نو دَ بيتِ ايل کاهن امصياه دَ اسرائيل بادشاه يروبعام ته
خبر واستاوه و ئې ويل چه عاموس دَ اسرائيل دَ کور په مېنځ کښ
په تا بانډِ بندړه تړلي دَي او زمکه دَ هغه دَ ټولو خبرو زغم کولي
١١ نه شِي ١١ ځکه چه عاموس داسي وايي چه يروبعام به په توري قتل

کړي شي او بني اسرائيل به له خپل وطن يقيناً په بند سره لاړ
۱۲ شي ۱۲ او امصياه عاموس ته وُوِ چه اي غيب ليدنکي ته له دي ځاي
نه ووزه وتښته دَ يهوداه زمکي ته او هلته کښ ډوډيِ خوره او هلته
۱۳ کښ نبوّت کوه ۱۳ مګر په بيت ايل کښ بيا نبوّت مه کوه ځکه چه دا دَ بادشاه
مقدّس او دده پاي تخت دي
۱۴ ۱۴ نو عاموس امصياه ته په ځواب کښ وُوِ چه زه څو نبي نه وم
۱۵ نه دَ نبي زوي بلکه زه څوغوبه او دَ انځيري جمع کونکي وم ۱۵ او خداوند زه
دَ موښيو له وروستو راونيولم او خداوند راته وفرمائيل چه لاړ شه
او ځما اُمّت اسرائيل ته نبوّت وکړه
۱۶ ۱۶ نو اوس ته دَ خداوند کلام واوره ته وايي چه دَ اسرائيل
په خلاف نبوّت مه کړه او دَ اسحاق دَ ټبر په خلاف خبره مه څڅوه دي
۱۷ دپاره خداوند داسي فرمايي ستا ارتينه به په ښهر کښ کنچني توب کوي او
ستا زامن او لوڼي به په توري پريوزي او ستا زمکه به په جريب سره
وويشله شي او ته به په يوه ناپاکه زمکه کښ مړ شي او بني اسرائيل
به له خپل وطنه په يقين سره په بند لاړ شي +

## نهم باب

۱ ۱ خاوند يهوواه ماته داسي راښکاره کړل او څه گورم چه يوه ټوکريِ
۲ دَه چه په هغي کښ دَ اوړي ميوي دي ۲ او ده وُوِ چه اي عاموس ته
څه وينې ما وُوِ چه دا اوړي دَ ميوو يوه ټوکريِ نو خداوند ما ته وُوِ
چه ځما دَ اُمّت اسرائيل اجل راورسيد زه به بيا ورتير نه شم
۳ ۳ او په هغي ورځي به دَ هيکل نغمي وير شي خاوند يهوه فرمايي
۴ ځاي په ځاي ډير مړي وي هغوي به بي په خاموشي وغورزوي ۴ دا
خبره واوريِ تاسو چه محتاجان کپ نغريِ ناچه تاسو دَ ملک مسکينان
۵ ورک کاڼيِ او تاسو وايي ۵ چه دا نوي مياشت به کله تيره شي چه سوندِ
غله خرڅه کړو او دَ سبّت ورځ ناچه دَ غنمو انبارونه پرانزو او ايفه

۶ ورولي او مثقال لوي كړو او په تكي سره تله د روغژنه جوړه كړو ۶ څكه
چه مونږ به روپيو مسكينان او په يوي جوړي دَ پڼو خوار سړي وپيرو
۷ او دَ غنمو نخښيز خرڅ كړو ۷ خداوند دَ يعقوب په دبدبي قسم خوړلي
دَي چه په يقين سره به زه دَ هغو كارونه هيڅري هير نه كړم-
۸ ۸ هغه زمكه به له هغه سببَ نه و ريږيږي څه؟ او هريو چه په
هغي اوسي وير به و نه كړي څه؟ هو هغه به دَ نيل سيلاب په دود
پوره وخيژي او دَ مصر د درياب په دود به موج و وهي او كوز به
۹ شي ۹ او په هغي ورځي به داسي وشي خاوند يَهُوَه فرمايي چه زه
به داسي وكړم چه نمر به دَ غارمي په وقت دوب كړم او زه به په
۱۰ رڼا ورځ زمكه تاريكه كړم ۱۰ او زه به ستاسو عيدونه په وير سره
او ستاسو نغمي په ژړا ژړا سره بدل كړم او دَ هر يوه په ملا
باندِ به شړيئ پورته كړم او دَ هر يوه دَ سر به كنجئ او زه به
داسي وير وكرزوم لكه چه په يو ځري څوي كيږي او دَ هغه آخر
به دَ ترخي ورځي په شان وي
۱۱ ۱۱ كوريِ هغه ورځي راځي خاوند يَهُوَه فرمايي چه زه به په
هغه ملك كښ قحط واچوم نو هغه نه دَ ډوډيِ او نه دَ اوبو دَ
تندي قحط بلكه داسي قحط چه دَ خداوند دَ خبري آوريدلو وي-
۱۲ ۱۲ نو دوي به له قعرِ درياب تر قعرِ درياب پوري او له قطبَ تر
مشرق پوري للوان كرزي دَ خداوند دَ كلام دَ لټولو دَپارَ مگر نه به
۱۳ ئي مومي ۱۳ او هغه ورځ به ښاسته پيغلي او ځوانان دَ تندي له
۱۴ سببَ بي هوښ شي ۱۴ هغه خلق چه دَ سمرونَ په گناه قسم خوري او وايي
چه اي دانَ ستا دَ خداي په ژوند قسم دَي او هغه چه دَ بيرسبع دَ لاري
په ژوند قسم خوري و به پرزي او بيا به هرگز پورته نه شي +

## نهم باب

۱ آ ما خاوند دَ مذبح څنګه ولاړ وليد او و يُ فرمايل دَ ستنو څنګي

وهغه چه استاني وخوځېږي هو هغه مات کړه چه دَ ټولو په
سرونو ولګيږي او زه به دَ هغو آخر په توره قتل کړم له دوي
نه هغوي چه وتښتي نو په تيښتنه به ونه وزي او چه له دوي نه
خلاصون سومي خلاص به نه شي ۲ اګر که دوي په دوزخ کښ کندو ۲
وکښي نو هم ځما لاس به يې له هغه ځاي نه راونيسي او که په آسمان
وخيژي نو زه به يې له هغه ځاي نه راکوز کړم ۳ اګر که هغوي دَ ۳
کرمل په سر خيل ځانونه پټ کړي نو زه به يې ولټوم له هغه ځايه
به يې راونيسم او که دَ قعرِ درياب په تلي کښ ځما له نظر نه پټ
شي نو زه به هلته مار ته حکم ورکړم او هغه به يې وچيچي ۴ او ۴
اګر که دوي بنديان شي دَ خپلو دښمنانو دَ وړاندِ ورشي نو هلته
کښ به توري ته حکم ورکړم او دوي به مړه کړي هو زه به په دوي
سترګي ولګوم دَ بدي او نه دَ نيکي دَپاره ۵ ځکه چه خاوند يَهوَه دَ ۵
لښکرو هغه دَي چه زمکه مسه کوي او دغه ويلي کيږي او دَ هغي
ټول اوسيدونکي به وير وکړي او هغه به دَ نيل دَ سيلاب په دود
پوره وخيژي او لکه دَ مصر درياب کوز به شي ۶ دا هغه دَي ۶
چه په آسمان باندِ خپلي بالاخالي بنا کوي او په زمکي باندِ دَ خپلو
قبه ودروي هغه چه دَ قعرِ درياب اوبه رابولي او دَ زمکي په
مخ يې توييږي دَ هغه نوم يَهوَه دي ۷ اي بني اسرائيلو تاسو ځما دَ ۷
وړاندِ دَ کوش دَ اولاد په شان نه يئِ څه ؟ خداوند فرمايي
ما اسرائيل دَ مصر له زمکي او فلستيان له کفتور او اراميان له
قير را پورته کړي نه دِي څه ؟ ۸ ګورئِ دَ خاوند يَهوَه سترګي په ۸
ګنهګار مملکت دِي او زه به هغه له روي زمين نيست او نابود
کړم مګر دَ يعقوب ټبر به بيخي نابود نه کړم خداوند فرمايي ۹ ګورئِ ۹
زه به حکم وکړم او دَ اسرائيل ټبر به دَ ټول قومونو په منځ کښ
لکه چه په پرويزي کښ چنړوي و به يې چنړوم نو هم يوه دانه به

۱۰ په زمکه پرې نه وزي ۱۰ خما دَ اُمت ټول گنهگاران چه وايي چه آفت به
نه له وروستو تر مونږ راشي او نه به له وړاندې په مونږ پريوزي په
توري به قتل شي
۱۱ ۱۱ زه به په هغه ورځ دَ داؤد نړيدلي جونگړه ودروم او دَ
هغه سوري به گير کړم او زه به دَ هغه ډيرۍ ودروم او هغه
۱۲ به دَ وړاندنيو ورځو په شان بنا کړم ۱۲ تا چه دوي دَ آدوم باقيه او
غير قومونه چه خما په نوم بللي شي په خپل ميراث واخلي خداوند
۱۳ چه دا دي کار کوونکي دَي فرمايي ۱۳ گورئ هغه ورځي راځي خداوند
فرمايي چه يويه کوونکي به په لو کوونکيو او دَ انگورو مږونکي به په تخم
کرونکي نژدي راشي او له ټولو غرونو به نوي شراب وڅاځي او ټولي
۱۴ غونډۍ به ويلي شي ۱۴ او زه به دَ خپل اُمّت اسرائيل بنديواني
بيرته راولم او دوي به ويجاړ ښهرونه بنا کړي او په هغو کښې
به استوگنه کوي او تاکستانونه به ولگوي او دَ دغو شراب به څښي
۱۵ دوي به باغونه جوړ کړي او ميوه به يئ خوري ۱۵ چه زه به دوي دَ دوي
په زمکو ولگوم او دوي به له خپلي زمکي چه ما ورکړي دَه ميچري
و نه کښلي شي خداوند ستا الله فرمايي ❊

# دَ عوبدياه نبي کتاب

## اول باب

۱ ۱ رؤيا دَ عوبدياه خاوند يهوه دَ ادوم په باب داسي وايي موږ دَ
خداوند له طرفه يو خبر واوريده او دَ قومونو په مينځ کښي رسول واستولي
۲ دَي پورته شئ او موږ دِ په هغه جنګ لره پورته شو ۲ ګوره ما ته دَ
۳ غير قومونو په مينځ کښي وړوکي وګرزولي ته ډير سپک يي ۳ نه
ستا دَ زړه کبرجني وغولولي اي دَ کمرو په چودو کښي اوسيدونکي ستا دَ
تکيه ګاه اوچتوالي چه په خپل زړه کښي وايي چه ما به څوک زمکي ته را
۴ کوز کړي ۴ که ته دَ ټجير په شان اوچت يي او که ستا ځاله دَ ستورو
په مينځ کښي ايښي شوي ده نو زه به دِ له هغه نه راکوز کړم خداوند وايي
۵ ۵ که تا ته غلهٔ درشي يا دَ شپي لوټونکي - نه څرنګ پريکړي يي نو خپل
کفايت به غلا نه کړي څه؟ که تا ته ځندونکي درشي نو څه انګورلي به پري
۶ نه ږدي څه؟ ۶ عيسو څرنګ ولټولي شه او دَده خزاني تلاش کړي شوي -
۷ ۷ ستا دَ وعدي ټول کسانو ته سرحدونو ته وشړلي او ستا دَ سلامتي
کسانو وغولولي او غلبه ئي درباندِ وکړه ستا دَ ډوډئ کسانو تر تا لاندِ
۸ دام کيښود په هغه کښي فهم نشته ۸ نو زه په هغي ورځي حکيمان له
۹ ادوم نه او فهم دَ عيسو له غره نه نابود نه کړم څه؟ ۹ نو ستا بهادران
به ولړزيږي اي تيمانه تاچه هر يو دَ عيسو له غره نه په قتل سره
۱۰ پريکړي شي ۱۰ ستا دَ ظلم په سبب يعقوب ورور لره شرمندګي به دِ
۱۱ پټ کړي او تر ابده به دِ پريکړي شي ۱۱ هغه ورځ چه ته دَ هغه په
مقابله ودريدلي هغه ورځ چه بيګانهٔ دَده مال اخست او بيګانه
دده دروازي ته ننوتل او په اورشليم ئي هسک اچاوه نو ته هم لکه
۱۲ يو له هغو وي ۱۲ او ته دِ دَ خپل ورور ورځي ته دده دَ جلاوطني په

ورځ نظر ونه کړي او نه دِ دَ يهوداه په زامنو دَ دوي دَ هلاکت په ورځ
۱۳ خاموش نه شي او نه دِ دَ تنکسي په ورځ خوله وير نه کړي ۱۳ او نه
دِ خما دَ اُمت دروازي ته دَده دَ آفت په ورځ کښ ننه نه وزي او نه
دِ دَده دَ مصيبت په ورځ نظر هم ورته ونه کړي او نه دِ دَ آفت په
۱۴ ورځ دَده مال ته لاس اوږد کړي ۱۴ او نه دِ په چارسُو ونه دريږي تا
چه دَده تښتيدنکي پريکړي او نه دِ دده باقيه دَ تنکسي په ورځ ونه
۱۵ سپاري ۱۵ ځکه چه دَ خداوند ورځ په ټولو قومونو نژدي دَه لکه چه
تا وکړه په تا به هم وکړي شي ستا عمل به ستا په سر دروګرزي
۱۶ ۱۶ لکه چه تا خما په پاک غره وخښل هسي به ټول قومونه وخښي
تل تر تله هو وبه خښي او وبه کوټي او دوي به داسي وشي لکه چه
۱۷ نه وُي ۱۷ او دَ صيحون په غره به خلاص شوي وِي او هغه به
مقدّس وِي او دَ يعقوب کور به دَ دوي دَ ميراث وارث شِي -
۱۸ ۱۸ او دَ يعقوب کور به اور شِي او دَ يوسف کور به لنبه او دَ
عيسو کور خس نو دوي به هغوي به بل کړي او هغوي به
ونغړي او دَ عيسو له کورَ به باقيه نه وِي ځکه چه خداوند خبره
۱۹ کړي دَه ۱۹ او اهلِ جنوب به دَ عيسو دَ غره وارث شِي او کورتني
به دَ فلسطينيانو او دَ افرائيم دَ ملکونو وارثان به شِي او دَ
۲۰ سامري. دَ ورشو او بنيامين دَ جلعاد ۲۰ او بنديان دَ دغه لښکر
دَ بني اسرائيل دِي چه په کنعانيانو کښ دي ځارفت او بنديان
دَ اورشليم چه په سفارد کښ دِي دَ جنوب دَ ښهرونو وارثان به
۲۱ شِي ۲۱ او خلاصونکي به دَ صيحون په غره وخيژي تا چه دَ عيسو
غر عدالت کړي او بادشاهي به دَ خداوند وِي *

# دَ يونس نبِي کتاب

## اول باب

١ او دَ خداوند کلام يونسؔ ځوي دَ امتِيؔ ته ورسيده او وئي ويل ١
٢ چه پورته شه هغه لوي ښهر نينوهؔ ته ورشه او دَ هغه په ٢
مخالفت کښ منادِي وکړه ځکه چه دَ هغو شرارت ځما دَ ورانډِ پورته
راغي ٣ ليکن يونسؔ دَ خداوند له حضور نه وترسيسؔ ته دَ تښتيدلو ٣
دَ پارَ پورته شه او دَي په يافاؔ کښ کوز شه او هلته کښ يُ يو
جهاز چه ترسيسؔ ته تلونکي وه بياموند نو دَ هغه کرايه ئي ورکړه
پرې کوز شه تاچه دَ خداوند له حضور نه وترسيسؔ ته له هغوي
سره لاړ شِي
٤ ليکن خداوند په درياب باندِ يو سخت باد تيل واهه ٤
او دَ درياب په منځ کښ لوي طوفان وشه داسي چه گمان وُه چه
جهاز به مات شِي ٥ نو ملاحان په ويره کښ شول او هر يوه خپل ٥
خداي ته ورناري کړِي او هغه جنسونه چه په جهاز کښ وُو په
درياب کښ ئي وغورزول چه په دي طور ئي سپک کړِي ليکن يونس
دَ جهاز دننه کوز لاړ پروت وه او درند اوده وه ٦ نو ناوخدا ورغي ٦
او ورته ئي وويل چه دا څه حال دَي اي خريدنکيَ پورته شه خپل
خداي ته ناري کړه که داسي وشِي چه الله مونږ په ياد کړِي چه هلاک
نه شو ٧ او هر سړي خپل ملګري ته وُوِ چه راشئِ مونږ به هِسک ٧
واچوُو چه معلوم کړو چه دَ چا په سبب په مونږ دا بلا راغله نو
هغوي هِسک واچاوه او هِسک په يونسؔ پريووت ٨ پس هغوي ورته ٨
ووِ چه ته مونږ ته راوښيه دَ چا په سبب دا بلا په مونږ راغله ستا
څه کسب دَي او ته له کومه راغلي يي ستا ملک کوم دَي او ته دَ

۹ کوم قوم یي ۹ ده هغوي ته ووِ چه زه عبراني یم او له یهواه دَ آسمان
۱۰ له الله نه چه دریاب اوخشکي ئي پیدا کړي دِي په ویرې کښ یم ۱۰ پس
هغه خلق بیحده ووېریدل او ده ته ئي وویل چه تا دا ولي وکړل ځکه
چه هغوي معلوم کړي وُو چه دَي دَ خداوند له حضور نه تښتیدلي
۱۱ دَي ځکه چه ده پخپله هغوي ته ویلي وُو ۱۱ نو هغوي ورته و ویل
چه مونږ له تا سره څه وکړو چه دریاب را نه تم شي ځکه چه دریاب
۱۲ نور زیات طوفاني کیده ۱۲ نو ده ورته وِوِ چه تاسي ما واخلئ په
دریاب کښ مې واچوئ نو به له تاسي نه دریاب تم شي ځکه چه زه
۱۳ پوهیږم چه دا لویه طوفان ځما په سبب په تاسو نازل شو ۱۳ په دي
هم هغو کسانو په ځاپو وهلو کښ ډیرښت وکړ چه وچي ته وګرزوي
لیکن دوي کولي نه شول ځکه چه دریاب دَدوي په مخالفت کښ نور
۱۴ هم زیات طوفاني کیده ۱۴ پس دوي خداوند ته ناري کړي و ئي ویل
چه اي خداوندَ مونږ تا ته زاري کوو چه مونږ دِ دَدي سړي دَ ځان
په سبب هلاک نه شو او ناحق خون ځمونږ په غاړه مه غورزوه ځکه
اي خداوندَ ته هر هغه څه چه تا خوښ کړي دِي هغه دِ کړي دِي
۱۵ او هغوي یونس واخست او په دریاب کښ ئي وغورزاوه او دریاب
۱۶ له خپلي مستئ نه ودریده ۱۶ نو هغه کسان له خداوند نه ډیر ډیر
ووېریدل او دَ خداوند ته ئي یوه ذبحه ذبح کړه او نذرونه ئي ومنل
۱۷ ۱۷ لیکن خداوند یو لوي ماهي مقرر کړي وُه چه یونس ونغړي او
یونس دري ورځي اودري شپي دَ ماهي په ګیډي کښ وه ٭

## دویم باب

۱ ۱ نو یونس دَ ماهي له ګیډي نه له خداوند الله خپل نه دُعا وغوښته
او و ئي ویل

| | | |
|---|---|---|
| ۲ | چه ما پخپل غم کښ خداوند ته وباله | او ده ځواب راکړ<br>ما دَ ګورهنډي له ننه ناره وکړه |

او تا ځما آواز واوریده
۳ ځکه چه هم تا زه په ژوري کښ
د دریابونو په منځ کښ وغورزولم
او د اوبو دارو ګیر کړلم
او ستا ټول موجونه او څپې په ما
باندې تیر شول
۴ نو ما وویل چه زه ستا د سترګو
له وړاندې وغورزولې شولم
نو هم ستا د مقدس هیکل په
لوري به بیا نظر وکړم
۵ زه اوبو تر ځان پورې ګیر کړم
او ژوره رانه چاپیر شوه
او د دریاب واښه مې په سر باندې
ونغښتلي شول
۶ او زه د غرونو تر بیخونو پورې کوز
شولم
د زمکې ارښتکو په ما باندې مدام (اوسي)
مګر اې خداوند ځما الله تا ځما ژوند
لره له سخاوالې را وخیژاوه
۷ هرکله چه ځما زړه په ما کښ ضعیف
شه نو ما خداوند په یاد کړم
او ځما دعا ستا په مقدس هیکل
کښ تر تا پورې ورو رسیده
۸ هغوي چه دروغ بطلانونه مني
خپل نعمتونه پرېږدي
۹ لیکن زه به د شکرګذارۍ په آواز
سره ستا د وړاندې قرباني
تیره کړم
زه به خپل نذرونه ادا
کړم
خلاصون له خداوند دې

---

۱۰ او خداوند ماهي ته وویل او دغه یونس په وچې باندې وچاربوست٭

## دریم باب

۱ آ او د خداوند کلام دویم وار یونس ته ورسید او وئې ویل چه
۲ ۲ پورته شه هغه لوې ښهر نینوه ته ورشه او هلته کښ هغه
۳ خبره ورنه وکړه چه زه ئې درته وکړم ۳ نو یونس د خداوند د کلام
په موافق پورته شه نینوه ته لاړ شه او نینوه د الله په نزد یو لوې
۴ ښهروه چه د هغه چاپیره د دریو ورځو لار وه ۴ او یونس ښهر په
ننه وتلو سر شه د یوې ورځې لار او منادي ئې وکړه او وئې ویل
۵ چه پس له څلویښتو ورځو به نینوې واړولې شي ۵ نو د نینوه اوسیدونکو

په الله ایمان راوړ او دَ روژي سنادِي ئي وکړه او ټولو خلقو که واړه
۶ وُو که لوي وُو شیرېږ ئي واغوستي ۞ او دا خبره دَ نینوه بادشاه ته
ورسیده او هغه له خپل تخت نه پورته شه او بادشاهي جامه
۷ ئي وویستله او شیري ئي واغوستله په ایرو باندِ کښیناست ۞ او دَ
بادشاه او دَ ارکانِ دولت په حکم په نینوه کښ یو اشتهار او فرمان
جارِي واهه و ئي ویل چه هیڅ سړي او حیوانان کله یا رمه هیڅ څیز
۸ دِ نه څکي نه دِ څرِي او نه دِ اوبه څښي ۞ لیکن سړي او حیوانان دِ
په شیرېږ پټ وِي او الله ته دِ په زور سره ناره وکړي هرڅوک دِ له
خپلي بدي لاري او له خپل ظلم نه چه دَدوي په لاسونو کښ دَي
۹ پسته راشي ۞ څوک پوهیږي چه الله به وګرزي او پښیمان به شي او
۱۰ له خپلَ سخته قهرَ په بیرته راشي تاچه مونږ هلاک نه شو ۞ او
الله دَ هغو کارونه ولیدل چه دوي له خپلو بدو لارو را وګرزیدل
نو الله له هغي بدِي نه چه هغه ویلي وه چه زه به له هغو سره
وکړم پښیمان شه او ده و ئي نه کړه ۞

# څلورم باب

۱ مګر یونس ډیر خپه شه او سخت غصّه شه ۞ او دَ خداوند دَ وړاندِ
۲ ئي دُعا وکړه او و ئي ویل اي خداوندَ زه تا ته عرض کوم دا څما خبره
نه وه څه ؟ هغه وقت چه زه لا په وطن کښ وم دي دَپارَ زه په بیړه
سره و ترسیس ته و تښتیدم څکه چه زه پوهیدلم چه ته زړه سوان
او رحیم الله يي چه په غصّي کولو صابر او ډیر مهربان يي او په بدِي
۳ ارمان کونکَي ۞ اي خداوندَ اوس څماځان له ما نه واخله که نه څکه چه
څما مړیدل څما له ژوند نه غوره دَي
۴ ۞ نو الله و فرمائیل چه ته ښه کوي چه غصّه شوي څه ؟
۵ ۞ او یونس له ښهرَ ووت دَ ښهر دَ مشرق په لورِي کښیناست
او هلته کښ ئي دَ څان دَپارَ یوه جونګړه جوړه کړه او تر هغي دَ لاندي

پہ سیوري کښې کښیناست چه وګوري چه په ښهر باندې څه کیږي ۶ ۶
نو خداوند الله (یوه ونه) دَ تورئ سازه کړه او هغه يې په یونس
باندې هسکه کړه چه دده په سر باندې سوري وي او له بدحالي نه يې
خلاص کړي او یونس دَ هغې توري (دَ ونې) په سبب ډېر خوښ شه ۔
۷ لیکن بله ورځ دَ صباح په وقت الله یو چینجی طیار کړ او هغه ۷
دَ توري (ونه) يې و وهله په هسې شان چه وچه شوه ۸ او چه نمر ۸
وخوت نو داسې وشول چه الله مشرق ګرم باد تیار کړ او دَ یونس
په سر باندې نمر اثر وکړ او بیخوده شه او دَ خپل ځان دَپارَ يې مرګ
وغوښت او وئې ویل چه له دغه ژوند نه مې مرګ غوره دَي ۹ او ۹
الله یونس ته وویل چه ته دَ دغې توري (دَ ونې) په سبب ښه کوي چه
غصّه شوې څه ؟ ده ویل چه زه ښه کوم چه غصّه شوم او مرګ
غواړم ۱۰ نو خداوند وفرمائل چه تا دَ هغې توري (په ونې) شفقت کړي ۱۰
دَي چه دَ هغې دَپارَ دې هیڅ محنت کړي نه دَي او نه دې هغه لویه
کړي ده چه هم په یوې شپې کښې زرغونه شوه او هم په شپې کښې
وچه شوه او ګنړه په ما باندې لازم نه دَي څه ؟ چه زه په دومره
لوي ښهر نینوه باندې شفقت ونه کړم چه په دغه کښې له یو لاکه
شل زره سړیو زیات دي چه پخپل ښي او ګینړ لاس کښې تمیز
کولي نه شي او څناور هم ډېر دي ❊

# دَ میکاه نبي کتاب

## اول باب

۱ دَ خداوند کلام چه دَ یهوداه دَ بادشاهانو یوتام او آخز او حزقیاه په ۱
ورځو کښې مورسټي میکاه ته ورسیده چه ده دَ سمرون او دَ اورشلیم په باب
ولید ۲ واورئ اي ټولو خلقو او غوږ کیږده اي زمکي ته او ستا ډکوالي او ۲
خاوند یهوَه هو خاوند دِ له خپل مقدّس هیکل نه په تاسي شاهد
ولي ۳ ځکه ګوره خداوند له خپل ځاي نه باهر راووزي او دي را ۳
کوزیږي او دَ زمکي اوچت مکانونه پایمال کوي ۴ او ټول غرونه تر ۴
هغه دَ لاندِ ویلي کیږي او خوړي ځیري کیږي لکه چه موم دَ اور له
مخ نه او لکه توي شوي اوبه په ژوره ۵ دا ټول دَ یعقوب دَ تقصیر ۵
او دَ اسرائیل دَ ګناه په سبب شوي دي دَ یعقوب تقصیر څه ده
سمرون نه دي څه؟ او دَ یهوداه اوچت مکانونه څه دي اورشلیم نه
دي څه؟ ۶ دي دپاره به زه سمرون دَ پټي دَ ټوټي او دَ انګورو دَ ۶
باغ دَ لګولو ځاي جوړ کړم او زه به دَ هغه کاڼي خوړي ته ورغړوم
او دَ هغه بنیادونه به لوڅ کړم ۷ او دَ هغي ټول کنودلي صورتونه به ۷
ریزه ریزه کړي شي او دَ هغه خرڅي په اور به وسیځولي شي او زه به
دَ هغو ټول بتان خراب کړم ځکه چه ده دا هر څه دَ بوي کسبي
په خرڅي سره ګټلي دي او هغه به دَ بوي کسبي خرڅي ته ور وګرزي
۸ دي دپاره به زه ژړیروي او هي هي وکړم زه به بیبله او لغړ ګرزم ۸
زه به دَ ګیدړو په دود انګولا کوم او شتر مرغانو په شان به ژړیروي
کوم ځکه چه دَ هغي زخمونه لاشفا دي نو هغه تر یهوداه پوري هم راغله
هغي ځما دَ خلقو تر دروازي پوري هو تر اورشلیم ورسیده ۱۰ تاسو ۱۰
په جات کښې دَ هغه خبر مه ورکوئ او په ژاره مه ژاړئ زه په

١١ بيتِ‌عفره کښې په خاورو غرېدلې يم ١١ اي دَ سفير اوسيدونکي تـه
برمنده او شرمنده لاړه شه هغه چه په زانان کښې اوسيدونکي وه
١٢ نه ووتله دَ بيت‌ايضل ژړېدوي له تاسو نه مقام اخلي ١٢ دَ ماروت اوسيدونکي
دَ ښيګړې دَپاره رنځوره شوي ده ځکه چه دَ خداوند له طرف نه بلا نازله
١٣ شوه چه دَ اورشليم تر دروازې ورسيده ١٣ اي دَ لکيس اوسيدونکي په
بادپايَ آس ګاډيِ و تړه هغه دَ صيحون دَ لور دَپارَ ورومبي ګناه شوه
١٤ ځکه چه دَ اسرائيل تقصيرونه په تا کښې بياموندَه شوي دي ١٤ دي دَپارَ
به ته مورست‌جات ته حصّه ورکړې دَ اکذيب تيم به اسرائيل له
١٥ بادشاهانو لره کذب شي ١٥ بلکه اي دَ مرشيه اوسيدونکي زه به
هغه چه ستا وارث دَي تا لره راولم هغه چه دَ اسرائيل جلال دَي
١٦ تر عدولام پورې به راشي ١٦ خپل (سر) ګنجئ کړه دَ خپلو ګرانو
هلکانو دَپارَ خپل سر وخريه دَ ګرُبت په دود خپل ګنج زيات
کړه ځکه چه هغوي له تا نه په بند لاړل ❖

## دويم باب

١ آهَي هَي په هغو باندِ چه دَ بطلان خيالونه کوِي او په خپلې بچاونړي باندِ
دَ شرارتونه کوِي چه صباح رڼا شي دوي دغه په عمل راوړِي ځکه چه
٢ هغه دَدوي دَ قدرت په لاس کښې دَي ٢ هغوي دَ پټو حرص کوِي
او په ظلم سره ئي اخلِي او دَ کورونو هم او هغوي رانيسِي هم داسي
په ميړه باندِ او دَده په کور باندِ هو په سړِي باندِ او دَ هغه په
٣ ميراث باندِ ظلم کوِي ٣ دي دَپارَ خداوند داسي وايِي ګوره زه دَدي تېر په
مخالفت کښې يو خيال کوم چه له هغه بلا نه به تاسي خپلي غاړي خلاصه
نه کړي شئِ او تاسي به له کبرجنې سره لاړ نه شئ ځکه چه دا بد وقت دَي
٤ تم هغه وقت به ښوک سړَي په تا باندِ يو متل راوړِي او په يوه غمجن
وِير سره به وير وکړِي او و به وايِي چه مونږ بالکلّ لوټ شولو هغه
ښمونږ دَ خلقو بخره بدله کړه هغه څله له ما نه بيله کړِي هغه ښمونږ ټيي

چا مرتد ته ورویشي ٥ دي، دَپارَ به له تاسو نه هیڅوک پاتي نه شي چه ٥
دَ خداوند په جماعت کښ هسک اچوي ٦ (دوي هغوي ته چه) نبوّت کوي ٦
(وايي) چه نبوّت مه کوئ نبوّت به نه وکړي دوي ته دَ هغو رسوائي به
و نه ګرزي ٧ اي تاسو چه دَ یعقوب نبر يئ و به ویلي شي دَ خداوند ٧
روح تنګ کړي شه څه؟ دا کارونه دَده دِي ځما خبري دَ هغه دَپارَ
چه سم چلیږي نیکي نه رسوي څه؟ ٨ پرون ځما خلق دَ دښمن په دود ٨
پورته کېدل تاسو له هغونه چه په آرام سره چلیږي اوچه له جنګ نه
پستنه راګرزي قبا له څادر سره و باسئ ٩ تاسو ځما دَ اُمّت ښځي دَدوي ٩
له ښائسته کورونو باسئ او تاسو دَ هغو دَ اولاد نه دَ همیشه دَپارَ ځما
جلال اخلئ ١٠ تاسو پورته شئ اولاړ شئ ځکه چه دا ستاسو دَ آرام ځاي نه ١٠
دَي دَ هغي ناپاکي په سبب چه هلاکت کوي هو سخت هلاکت سره ١١ که څوک ١١
سړي دَ هوا او دَ دروغو پیروي وکړي ووايي چه زه به تا ته دَ شرابو او دَ
نشي په باب نبوّت وکړم نو هم هغه سړي به دَدي قوم نبي وي
١٢ اي یعقوب زه به په یقین سره ستا ټول واړه جمع کړم زه ١٢
به په یقین سره دَ اسرائیل باقیه جمع کړم زه به هغو دَ هغو ګډو
په شان چه په بصره کښ دي اودَ هغي رمي په دود چه دَ هغي
دَ څراګاه په منځ کښ وي یوځاي کړم دَ ډیرو سړیو په سبب هغوي
به شورماشور وکړي ١٣ ړیکونکي دَ هغو دَ وړاند وړاندِ دروي هغوي ١٣
ړیکول کوي تر دروازي پوري تیریږي او له هغي نه ووزي او دَ هغو
بادشاه دَ هغوي وړاندِ وړاندِ دروي هو خداوند دَ هغو سر دَي +

# دریم باب

١ او ما وُوِ چه اي دَ یعقوب سردارانو او دَ اسرائیل دَ ټبر قاضیانو واورئ ١
که نه ستاسو دَپارَ دَ عدالت پیژاندل لازم نه دِي څه؟ ٢ تاسو هغه يئ چه ٢
دَ نیکي سره کینه لري او په بدي مینه کوي چه دَ خلقو پوستونه ورنه کاږي
او دَ هغو له هډوکیو غوښي ٣ او چه ځما دَ اُمّت غوښي خوري او څرمني ئي ٣

ورنه باسي او هډوونه ئې ماتوي او ټوکري ټوکري کوي کوپا که هغوي دَ
۴ کټوئ دَپارَ او کوپا کِه لکه غوښې چه دَ دیګ په مېنځ کښې وِي ۳ نو به
دوي خداوند ته ناري وکړِي مګر دي به ځواب ور نه کړِي هو دَي به هغه
وقت خپل مخ ور نه پټ کړِي څکه چه هغوي خپل عملونه بد کړِل
۵ ۵ خداوند دَ هغو نبیانو په حق کښې چه ځما اُمت ګمراه کوِي او
چه پخپلو غاښونو ئې چیچي او دَ سلامتي ناري وهِي او دَ هغه سره چه
دَدوي په خولو کښې څه نه اچوِي دَ هغه په مخالفت وجنګیدلو ته طیار
۶ دِي داسي فرمايي ۶ دي دَپارَ به په تاسي شپه شِي چه په هغې کښې به
ستاسي رؤیا نه وِي او به تاسي به تاریکي وِي چه دَ هغه په سبب به
تاسي دَ غیب پیژاندل و نه کړئِ او به نبیانو به نمر ډوب شي او په هغو
۷ باندِ به ورځ تورتم شِي ۷ نو به رؤیا لیدونکي پښیمان شي او غیب
پیژاندونکي به شرمنده شِي هو ټول خلق به خپلي شونډي پټي کړِي څکه چه دَ
۸ الله له طرفه هیڅ ځواب نشته ۸ مګر زه دَ خداوند دَ روح په سبب له قوّت او
له انصاف نه او له قدرتَ ډک یم تاچه یعقوب لره دَده تقصیر او اسرائیل
۹ لره ئي خطا ورو ښیم ۹ اي دَ یعقوب دَ ټبر سردارانو او اي دَ اسرائیل دَ کور
قاضیانو واورئِ که نه تاسو چه له عدالت سره نفرت لرئِ او ټوله راستئ کږي
۱۰ لري ۱۰ تاسو صیحون په خونریزي سره او اورشلیم په بدئِ سره بنا کوئ
۱۱ ۱۱ دَده سرداران په رشوت سره عدالت کوِي او دَده کاهنان په اجرت
سره تعلیم ورکوِي او دَ هغه نبیان دَ نقدو دَپارَ غیب ویل کوِي په
دي هم په خداوند تکیه کوِي او وایي چه خداوند ځمونږ په مېنځ کښې نه
۱۲ دَي څه ؟ هیڅ بلا به په مونږ را نه شِي ۱۲ له دي سببَ به صیحون هم
ستاسي په سبب دَ پټي په دود یویه کړي شِي او اورشلیم به نودي توري
شِي او دَ هیکل غر به دَ ځنګل دَ اوچتو مکانونو په شان شِي *

## څلورم باب

۱ ۱ مګر په آخرو ورځو کښې به داسي وشِي چه دَ خداوند دَ کور غر به دَ

غرونو په څوکې باندِ ودراوه شي او له ټولو غونډيو به اوچت کړي شي او
امتونه به ور و بهيږي
۲ او ډير خلق به راشي او و به وائي چه راځئ چه مونږ دَ خداوند
په غره او دَ يعقوب دَ الله وکور ته وخيژو او دَي به مونږ ته خپلي لاري
راو ښيي او مونږ به دَده په لارو لاړ شُو ځکه چه توريت به له صيحونَ
۳ او دَ خداوند کلام به له اورشليمَ راووزي ۳ او دي به دَ ډيرو خلقو په مينځ کښ
عدالت وکړي او ډير زورآور قومونه به چه لري اوسي وترټي او هغوي
به له خپلو تورو سسپارونه وتکوي او له خپلو برچو به لرونه: يو قوم به
۴ په بل قوم باندِ توره نه پورته کوي او بيا به دَ جنګ تعليم ونه کړي ۴ نو
دوي به هر يو سري ترخپل خپل تاک دَ لاندِ او دَ انځير تروني دَ
لاندِ کښيني او هيڅوک به ئې نه ډاروي ځکه چه دا دَ لښکرو دَ رب خولي
۵ فرمائيلي دي ۵ ځکه چه ټول قومونه به هر يو دَ خپل خپل خداي په نوم
دروي مګر مونږ به دَ خداوند خپل الله په نوم مدام دروو
۶ ۶ خداوند فرمائي چه زه به په هغي ورځي کښ هغوي چه مانده شوي دي
جمع کړم او هغوي چه بستلي شوي دي ونيسم او هغوي چه ما آزارولي دي -
۷ ۷ او زه به هغه چه مانده شوله يوه بقيّه به ئې کړم او هغه چه تر لري
پوري پراګنده کړي شوي وَه يو زوراور قوم به ئې جوړ کړم او خداوند به دَ
صيحونَ په غره باندِ له اوس نه تر ابدالآباد پوري په هغو سلطنت کوي
۸ ۸ او ته به اي دَ رمي برج او دَ صيحونَ دَ لور غونډئ په تا
باندِ به دا راشي يعني وړاندني بادشاهت هو دَ اورشليم دَ لور بادشاهت
۹ به بيا راشي ۹ اوس ته ولي په زور سره ناري وهي په تا کښ هيڅ
بادشاه نشته څه ؟ ستا صلاح کار ورک شوي دَي څه ؟ چه ته دَ
۱۰ لنګيدوني ښځي په دود دردونو و نيولي ۱۰ درد منه شه او دَ لنګيدوني
ښځي په شان زور وکړه اي دَ صيحونَ لوري ځکه چه اوس به ته له
ښهرَ باهر ووزي او په ميدان کښ به اوسي او تر بابل پوري به

راشي هم هلته کښ به خلاصون مومي هلته کښ به دِ خداوند
ستا دَ دښمنانو له لاسَ خلاصه کړي
١١ ١١ او اوس ډېر قومونه ستا په خلاف جمعَ شوي دِي او وائي چه
١٢ هغه دِ ناپاکه کړي شي موږ دِ په خپلو سترګو صيحون وويٰنو ١٢ مګر
هغوي دَ خداوند له خيالونو نه آګاه نه دِي او دَده ارادي نه پيژني
ځکه چه ده هغوي دَ ګيډيو په شان درمند ته جمعَ کړي دِي -
١٣ ١٣ اي دَ صيحون لوري پورته شه غوبل وکړه ځکه چه زه به ستا
ښکرونه اوسپنه او ستا سُمونه زيړجوړ کړم او ته به ډېر قومونه
ټکړي ټکړي مات کړي او ته به دَ هغو ذخيري دَ خداوند نذر کړي
او دَ هغو مالونه به هغه ته چه دَ ټولي زمکي خاوند دِي ؛

## پنځم باب

١ ١ اي دَ فوځونو لوري ته اوس دَ فوځونو په صفونو جمعَ شه هغه په موږ
قلابند مورچه بندي کړي ده هغوي به دَ اسرائيل قاضي په وټ باندِ په
٢ سوټي وهي ٢ مګر ته بيت اللحم افراتاه اګر که ته دَ يهوداه په زرګونو
کښ وړوکي يي نو هم له تانه به ما ته هغه راوزي چه په اسرائيل
به حاکم وِي او دَ هغه راوتل له قديم نه هو دَ ازل له ورځو
٣ دِي ٣ دي دَ پارَ به هغوي دي ورکړي تر هغه وقت پوري چه هغه
چه زيږونکي زيږولي وِي نو دَ هغه باقي ورونړه به دَ اسرائيل
اولاد ته بيرته راشي
٤ ٤ او هغه به ولاړ وِي او دَ خداوند په قدرت به دَ خداوند
خپل الله دَ نوم په بزرګي سره څرول کوي او هغوي به ټينګ اوسي
٥ ځکه چه اوس به هغه دَ زمکي ترحدونو پوري بزرګ وِي ٥ او دغه به
سلامتي وِي او چه اسور څموږ په زمکي کښ راشي او څموږ په
محلونو کښ قدم کيږدي نو موږ به اوه شپانه او آته سرداران وردروو
٦ په هغه باندِ وخيژو ٦ او هغوي به په توري سره دَ آسور ملک او دَ

١ نمرود زمکه دَ هغه په دروازو کښې ویران کړي او له آسور به خلاصون
وښي هرکله چه هغه دَ مونږ په زمکه کښې راشي او دَ مونږ په سرحدونو
٧ کښې قدم کیږدي ۷ او دَ یعقوب باقیه به دَ ډیرو قومونو په منځ کښې داسي
وي لکه چه له خداوند نه شبنم او لکه چه باران په واښو باندِ چه
دَ سړي دَپارَ نه ودریږي او نه دَ بني‌آدم په خاطر تم کیږي
٨ ۸ او دَ یعقوب باقیه به دَ غیر قومونو دَ ډیرو ټولیو په منځ کښې
داسي وي لکه زمري دَ ځنګل په ځناورو کښې او لکه ځوان زمري دَ میږو
په رمي کښې وي هغه که پوري ووځي هغه ئي پایماله کړي او ځیري
٩ کړي ئي او هیڅوک نشته چه خلاص ئي کړي ۹ ستا لاس دِ ستا په
١٠ دښمنانو بلند کړي شي او ستا ټول دښمنان دِ پریکړي شي ۱۰ او هغه
ورځ به داسي وشي خداوند فرمائي چه زه به ستا اسونه ستا له منځه
١١ پریکړم او ستا ګاډيِ به نیستي کړم ۱۱ او ستا دَ زمکي ښهرونه به پریکړم
١٢ او ستا ټولي قلاوي به و نړوم ۱۲ او ستا دَ لاس جادوګريِ به پریکړم او
١٣ تا ته به بیا فال‌کیران نه وي ۱۳ او ستا کنوډلي صورتونه به او ستا ستني
ستا له منځ به ئي پريکړم او ته به بیا دَ خپل لاس کاریګري ته
١٤ عبادت و نه کړي ۱۴ او زه به ستا آشریم ستا له منځ نه وکاږم او
١٥ هم ستا ښهرونه به تباه کړم ۱۵ او زه به هم له غصي او له قهر
سره له هغو غیر قومونو چه نه ئي اوریدل بدله واخلم ❊

## شپږم باب

١ ۱ واوريِ که نه چه خداوند څه وائي چه پاسه دَ غرونو دَ وړاندِ بحث
٢ وکړه او غونډيِ دِ ستا آواز واوري ۲ اي غرونو او اي دَ زمکي مدامي
بنیادونو دَ خداوند بحث واوريِ ځکه چه دَ خداوند له خپل اُمت سره
٣ بحث دي او هغه به دَ اسرائیل سره دعویٰ کړي ۳ اي زما اُمت ما
٤ په تا څه کړي دي او په څه مِ مانده کړي ئِ ته نو تا ته په ما ګواهي
وله ځکه چه ما تا ته دَ مصر له زمکي راوستلي او دَ غلامي له کور

نه تر به غلامۍ سره خلاص کړی او ستا د وړاندې مې موسی او هارون او
۵ مریمه واستول ؞ ای خما اُمت یاد وکړه چه د موآب بادشاه بالاق څه
مصلحت وکړ او د بعور ځوی بلعم هغه ته څه ځواب ورکړ له شتیم نه تر
۶ جلجال پورې تا چه ته د خداوند صداقت وپېژنې ؞ زه له څه سره د خداوند
۷ په حضور ورشم او د الله تعالی ته ځنګه سجده وکړم ؞ سېځونکې قربانۍ او
یو کلني سخي واخلم ذده د وړاندې ورشم څه؟ خداوند به په زرګونو ګډونو
یا د تیلو په لسو زرو ویالو به خوشحاله شي؟ زه به خپل مشر د خپلې تقصیر
په عوض کښ د خپلې کېدې میوه د خپل ځان د خطا په بدل کښ ورکړم
۸ څه ؞ ای انسانه ده تا ته هغه ښکاره کړې دې چه ښه دې او خداوند
له تا نه نور څه غواړي مګر دا چه ته انصاف کوې او په رحمت مینه کوې او
۹ له خپل الله سره په عاجزۍ درومې ؞ د خداوند آواز ښهر ته ناري کوي او
هوښیاري به ستا نوم ووینې تاسو د هغه همسا واورئ او هغه چا
چه ئې مقرر کړي دي
۱۰ ؞ تر اوسه د شریر په کور کښ د شرارت خزانې شته دي او وړوکې ایفه
۱۱ نفرتي ده ؞ زه چه د شرارت له تلې او د تګي له ګځوړي سره پاک وشمېرم څه ؞
۱۲ ؞ دې دپاره چه د هغې دولتمند له ظلمه ډک دي او د هغې اوسېدونکي دروغ
۱۳ وايي بلکه د هغوی په خولې کښ د هغوی ژبه تګونکې ده ؞ ځکه چه ما ته په لوی زخم
۱۴ سره وهلې یې او ستا د ګناهونو په سبب تر ویران کړې یې ؞ ته به وخورې مګر
موړ به نه شې ځکه چه ستا لوږه به ستا په اندرونه کښ وي ته به وړل کوې
مګر خلاص به ئې نه کړې او هغه څه چه ته خلاص کړې زه به ئې توري ته وسپارم
۱۵ ؞ ته به وکرې مګر لو به نه کړې زیتون به وځپې مګر تیل به په ځان و نه لګوې
او نبتیزلي انګور لېکن شراب به ورنه وڅښې
۱۶ ؞ ځکه چه د عمري قانونونه او د اخیاب د کور ټول عملونه
ساتلي شوي دي او تاسو د هغوی په مصلحتونو چلېږئ چه زه دې ویرانۍ ته ورکړم
او د هغه اوسېدونکي سپکۍ ته نو تاسو به خما د اُمت رسوائي واخلئ ؞

# اوم باب

مَي مَي په ما بانْدِ خکه چه خما داسي حال دَې لکه ټولول دَ ميوي دَ اوړي ۱
لکه انړولِي دَ انګورو هيڅ ژنګوري نشته چه خوړلي شي دَ انځرِ دَ
ورنبيْ پخه شوي ميوه خما ځان غواړي ديندار سړي له ملک ورک ۲
شول او هيڅوک په بني آدم کښ راست نشته هغوي ټول واړه په پټولي کښ
کښيني چه خون وکړي هرچا جال وغوړاوه خپل وروړ ښبلوي
دوي لاسونه په بدئ بانْدِ هسي دِي چه پوره ئي کړِي سرداران ۳
اجرت غواړِي او قاضيان هم هغه غواړِي او لوي سړِي دَ خپل زړه دَ
شهوت خبري او هم ټول واړه دَ بدِي اودل کړِي هغوي چه په دوي ۴
کښ له ټهترو بهتر دِي دَ کړتومي په دود دِي او هغوي چه لوي
راست دِي دَ اغزيو دَ وياړي په شان ستا دَ نګهبانو ورځ هو ستا
دَ بازخواست ورځ راځي اوس به دَ هغو حيراني وِي
تاسو په هيڅ دوست اعتبار مه کوئ په لاري باور ښبونکي مه ۵
لرئ هو ته دَ خپلي خولي دروازه دَ خپلي هم کناري دَ وړاندِ بنده لره-
خکه چه خوي دَ خپل پلار سپکه کړِي او لور په خپلي مور څپړِي او نږور ۶
په خپلي خواښي او دَ سړِي دښمن هم دَده دَ خپل کور کسان دِي
مګر زه به دَ خپل خداوند لار کورم او دَ خپل نجات وَکونکي الله ۷
انتظار به کوم خما الله به خما واوړِي
اي خما دښمنَ په ما بانْدِ خوښي مه کوه خکه چه زه ولوېږم نو ۸
به پورته شم چه په تياري کښ کښينم نو خداوند به خما دَپارَ نور وِي-
زه به دَ خداوند دَ قهر زغم وکړم خکه چه ما ده ګناه کړِي ده تر دي ۹
حده چه خما دَپارَ حجت ثابت کړِي او خما دَپارَ انصاف وکړِي هغه به م
رڼا ته وباسِي او زه به دَده راستبازي ووينم نو خما دښمن به هغه ۱۰
حال ووينِي او هغه چه ما ته ئي ويل چه خداوند ستا الله چرې دَې

په شرمندګي سره به پټه شي خما سترګي به هغه ووینې اوس به هغه دَ
۱۱ کوڅو دَ چيکړو په څير پايمال شي ۱۱ يوه ورځ ستا دَ ديوالونو جوړولو دَپاره
۱۲ چه هغه ورځ به حکم لري کړي شي ۱۲ په هغې ورځي کښې به هغوي
له آسورَ او دَ مصر له ښهرونو او له مصرَ تر درياب پوري او له
قعرِ درياب تر قعرِ درياب پوري او له غره نه تر غره پوري تا ته راشي -
۱۳ ۱۳ سره دَدي دا زمکه به دَ هغه په سبب چه په هغې کښې اوسي او دَ
هغه دَ کارونو دَ ميوي په سبب ويرانه پرته وي
۱۴ ۱۴ ته خپل اُمت په سوټي سره وڅراوه چه ستا دَ ميراث رمه
ده او په ځنګل کښې بيله دَ کرمل په منځ کښې اوسي هغه دِ په بسن
۱۵ او په جلعاد کښې دَ وړاندنيو ورځو په دود وڅري ۱۵ لکه چه په هغو
ورځو کښې چه ته دَ مصر له زمکي راوتلي وي په هغه شان سره به
هغوي ته خپل عجائبات وربښکاره کړم
۱۶ ۱۶ غير قومونه به هغه ووینې او سره له خپل ټول قوتَ به
شرمنده شي هغوي به په خپلې خولې لاسونه کيږدي او غوږونه به ئي
۱۷ کاڼه شي ۱۷ هغوي به دَ مار په دود خاوري څټي او دَ زمکي دَ څښندګيو
په دود به له خپلو کوڅو په لرزي سره راووځي او دوي به خداوند
خُموږ الله ته په ويره سره راشي هغوي به ستا په سبب و ويريږي
۱۸ ۱۸ څوک ستا په دود الله دَي چه بدکاري معافه کوي او دَخپل ميراث
دَ باقيه له تقصيرونو نه تيريږي دَي خپله غصّه تر هميشه پوري
۱۹ نه ساتي ځکه چه دَي په مهرباني کولو خوشحاليږي ۱۹ هغه به بيا راوګرزي
هغه به په موږ باندِ رحم وکړي هم دَي به خُموږ ګناهونه ودربي
۲۰ ته به دَ هغو ټولي خطاوي دَ قعرِ درياب په ژوري کښې وغورزوي ۲۰ ته
به له يعقوب سره وفاداري پوره کړي او له ابراهيم سره هغه مهرباني
چه دَ هغې په باب دِ له قديم زماني نه خُموږ له پلرونو او نيکو
سره قسم خوړلي وُو ❊

# دَ نحوم نبي كتاب

## اول باب

۱ دَ نينوه په باب الهامي كلام دَ القوشي نحوم دَ رويا كتاب ۲ خداوند ۲
غيور او بدل اخستونكي الله دَي هو خداوند بدل اخستونكَي او
قاهر دَي خداوند له خپلو مخالفانو بدل اخلي او دَ خپلو دښمنانو دَپارَ
قهر ساتلي لري ۳ خداوند په غصّي كښې غرځند مگر په قدرت كښې قوي ۳
دَي او دَي سودام به پاک كنړل و نه كړي دَ خداوند لار په گرد باد كښې
او په طوفان كښې ده او وريځې دَ ده دَ پښو دوړي دَي ۴ هم دَي قعر درياب ۴
ترټي او وچ كړي ئي او ټول درياونه وچوي بسن او كرمل مړاوي كيږي
او دَ لبنان گلونه مړاوي كيږي ۵ له ده نه غرونه رپيږي او غونډئ ويلي ۵
كيږي او زمكه دده له حضور نه پورته كيږي هو دنيا او هرڅه چه په دي
كښې اوسيږي ۶ دَ هغه دَ غصّي دَ وړاندې څوک ودريدلي شي او دده په توده ۶
قهر كښې څوک تم كيدلي شي دده قهر دَ اور په دود بركيږي او كمرونه ور نه
نړيږي ۷ خداوند نيک دَي او دَ تنګي په ورځ مضبوطه قلا ده دَي هغوي ۷
چه په ده توكّل لري پيژني ۸ ليكن اوس به دَي دَ هغه مكان په يوه ۸
تيريدنكي سيلاب سره تمام ورک كړي او دده دښمنان به په تاريكي پسي شي
۹ تاسو دَ خداوند په مخالفت كښې څه خيال كوئ هغه دَ تمام هلاكت ۹
صانع دَي تنګي به دوباره پورته نه شي ۱۰ اگر كه هغوي دَ اغزيو په شان ۱۰
مروړلي شي او له خپلو شرابو نه شرابي دي ليكن هغوي به دَ وچ خس په
دود بالكل وخوړلي شي ۱۱ له تا نه يو خيال كونكي دَ بدي په خداوند راوتلي ۱۱
دَي چه مكروه مصلحتونه كوي ۱۲ خداوند داسي وايي اگر كه دوي صحيح او سلامت ۱۲
وي او دوي ډير هم وي په دي به هم دوي پريكړي شي او دي به تير شي سره
ددي چه ماته وربولي بيا به دِ هيڅري و نه دربوم ۱۳ او اوس به ۱۳

١٤ زه دَ هغه تُرغ له تانه مات کړم او ستا بندونه به وشلوم ١٤ لیکن خداوند
ستا په حق کښې فرمایلي دِي چه ستا دَ نوم به نور هیڅ ونه کړلي شي زه به
ستا دَ ښُخاني له مینځ نه کَنودلي صورتونه او ویلي کړي شکلونه پرېکړم زه به
١٥ هغه ستا قبر جوړ کړم ځکه چه ته پلیت یې ١٥ ګوره په غرونو باندِ پښې دِ زیري
راوړنکي او دَ سلامتي منادِي کونکي اي یهوداه ته خپل عیدونه کوه
او خپل نذرونه ادا کړه ځکه چه پس له دي به شریر ستا په
مینځ کښې نه شي نیر هغه بېخي پرېکړي دَي ✣

## دویم باب

١ ١ وېښتونکَي ستا په مخامخ راختلَي دَيَ ته قلا ساتلي لره او دَ لاري څار
٢ کوه خپله ملا ترلي لره او خپل ځان په ډېر زور سره مضبوط کړه ٢ ځکه
چه خداوند دَ یعقوب دبدبه دَ اسرائیل دَ دبدبه په دود بیا په حال کوِي
اګر که خالي کونکیو هغوي خالي کړي دِي او دَ هغو دَ انګورو څانګي ئې بربادي کړي
٣ ٣ دَ هغه دَ پهلوانانو ډال سور کړي شوي دَي جنګي ځوانان په قرمزي پوشاک
کښې دِي ګاډيَ دَ هغه دَ طیاري په ورځ کښې دَ فولاد له اورسره وِي او
٤ دَ صنوبر برچي به ښخولي شي ٤ په کوڅو کښې به ګاډيَ په تنديَ سره زغلي
په چوکونو کښې یو په بله لګیږي هغوي به په نظر کښې دَ مشعلونو
٥ غونډِ وِي هغوي به دَ برېښنا غونډِ دنګیږي ٥ هغه خپل بهادران په
یاد راوړِي هغه په خپلو تلو کښې ټېندک خوري دوي دَ هغه په دیوال
٦ بیره کوي او باره تیاره کړي شي ٦ د رودونو دروازي پرانتلي شي او
٧ محل ویلي کېږيَ ٧ هُصَّب برمنډه کیږي هو هغه بیولي شي او دَ هغه
وینځي به دَ کوترو په دود به غومبید سره وِیر کوي او سیني به وهِي
٨ ٨ نینوه له وړاندِیو ورځو نه دَ اوبو دَ ډنډ په شان ده نو هم
هغه به تیښته څِي هغوي وایي چه ودریږِ ودریږِ مګر هیڅوک مخ
٩ نه ګرزوِي ٩ سپین زرو لوټيَ او سره زر لوټ کړيَ ځکه چه دَ مالونو
١٠ هیڅ انتها نشته ډېرِ قیمتي لوښِي بیحد ډیر دِي ١٠ هغه خالي او خراب

او ويران دَي زړه ويلي کيږي او زنګونه رپيږي دَ هر يوه په ملا کښ
سخت درد دَي او دَ دغو ټولو دَ څهرو زنګونه الوتلي دي ١١ دَ نيرو زمرو غار ١١
او دَ ببر زمريِ دَ بچيو دَ خوراک ځاي چرته دَي چه په هغه کښ
به ببر زمريِ او زمرئ او دَ ببر زمري بچي ګرزيدل او هيڅا به نه ويرول
١٢ ببر زمريِ به دَ خپلو بچيو دَ خوراک په موافق څيرل کول او دَ ١٢
خپلو زمريو دَپارَ به ئي تربتول او خپلو ځايونه به ئي له ښکار
نه او غارونه به ئي له څيرليو ډکول ١٣ خداوند دَ لښکرو فرمايي چه ١٣
ګوره زه ستا مخالف يم او زه به دَ هغه ګاډئ په لوګي کښ وسيځم
او توره به ستا ځوانان ببر زمريِ وخوري او زه به ستا ښکار
له زمکي نه پريکړم او ستا دَ ايلچيانو آواز به بيا واوريدلي نه شي ۞

## دريم باب

آهي هي په خونريز ښهر هغه له دروغو او له شوکه بالکل ډک دَي ښکار ١
نه لري کيږي ٢ دَ تراټ شور او دَ څرخونو دَ کړهار شور او دَ آسونو ٢
دَ ښيخ ټاپي او دَ ګاډيو غرښهار ٣ دَ آسونو سواري دَ توري په برېښ او ٣
دَ برچي پړکول او دَ ټوپلو ټولي او دَ وژليو ډيريِ او دَ مړيو تودي دَ
مړيو انتها نشته دوي دَ هغو په مړيو ټينډک خوري ٤ دَ هغي ښائسته ٤
ښکلي کنچني دَ جادوګرئ شاهزادګئ دَ ډيرو زناکاريو په سبب چه دا
قومونه له خپلو زناکاريو او ټبري له خپلو جادوګريو خرڅوي ٥ خداوند دَ ٥
لښکرو فرمايي چه ګوره زه ستا مخالف يم او ستا لمني به پورته ستا
په مخ در واړوم او قومونو ته به ستا برمنډوالي او بادشاهتونو ته
به ستا سترَ ور ښکاره کړم ٦ او زه به مکروه ګندګئ په تا باندي در ٦
واچوم او تا به رسوا کړم هو تا به انګشتنما کړم ٧ او داسي به وشي چه ٧
هر يو چه په تا باندِ نظر وکړي درنه وبه تښتي او وايي به چه نينواه
ويرانه شوي دَه څوک به ورباندِ وير وکړي زه ستا دَپارَ تسلي درکونکي
له کومه لټوم ٨ ته له نوآمان ښه يي څه؟ چه دَ درياؤنو په منځ کښ ٨

اوسیدل او په څلورو طرفونو ني اوبه وي او دَ ښهرپناه ئي قعرِ دریاب
۹ وه او دیوالونه ئي له دریابَ شوي وُو ۹ کوش دَ هغه زور وه او مصر هم
۱۰ او انتها ئي نه وه فوطَ او لوبیم ستا مددکونکي وُو ۱۰ په دي هم هغه
جلاوطنه شوه هو په بندلاره شوه دَ هغي بچي دَ هغي دَ ټولو کوڅو په
سرو کښ ریزمریز شول او دوي دَ هغي په عزتمندو هسک واچاوه او
۱۱ دَ هغي ټول بزرګان په زنځیرونو بند شول ۱۱ ته به هم مسته شي ته
۱۲ به پټه شي ته به هم دَ دښمن په سبب پناه ولټوي ۱۲ ستا ټول کوټونه
به داسي شي لکه چه دَ انځیر وني چه په هغو باندِ ورنبي پخه شوي
میوه لګیدلي وِي چه که هغه وخوځوله شي نو هغه به دَ خوړونکي په
۱۳ خولي کښ پریوزي ۱۳ ګوره ستا خلق چه ستا په منځ کښ دِي ښځي دِي
ستا دَ بادشاهت دروازي ستا دَ دښمنانو په مخ به وازي پرتي دِي ستا
۱۴ ارمونه اورخوړلي دِي ۱۴ ته دَ قلابندِي دَپارَ اوبه ډکي کړه اوخپلي قلاوي
مضبوطي کړه په خټي کښ ګډ په خړوبي کښ وخیژه او بټي مضبوطه
۱۵ کړه ۱۵ هلته به دِ اور وخوري توره به دِ پریکړي هغه به دَ ختونکي ملخ
په دود تا وخوري ته دَ خپل ځان دَپارَ دَ ختونکیو ملخانو په شان ډیر کړه
۱۶ او دَ هجوم کونکیو ملخانو په څیر خپل ځان ډیر کړه ۱۶ ته خپل سوداګران
ډیروانه کړه چه هغوي دَ آسمان له ستوریو زیات شي ختونکي ملخان خرابول
۱۷ کوي او الوزي ۱۷ ستا تاجداران دَ هجوم کونکیو ملخانو په دود دِي او ستا
سرداران دَ ډیرو ملخانو په شان دِي چه دَ ساړه په وقت په ویاړو کښ
اوسي اوچه نمر خیژي نو الوزي او مکان ئي نه معلوم کیږي چه دوي
۱۸ چرته دِي ۱۸ اي دَ اسور بادشاه ستا شپانه اوده دِي ستا سرداران
ملاست دِي ستا خلق په غرونو کښ پراګنده شوي دِي او هیڅوک نشته
۱۹ چه یو ځاي ئي کړي ۱۹ ستا دَ ماتیدلو علاج نشته ستا زخم سخت دَي
ټول چه ستا شهرت واوري په تا به تاړي ووهي ځکه څوک دَي چه په
هغه باندِ به ستا شرارت مدام تیر شوي نه وِي ❊

# دَ حبقوق نبي کتاب

## اول باب

آهغه الهام چه حبقوق نبي وليده ۲ اي خداوندَ زه به ترڅو پورې ۱
فرياد کوم او ته نه اورې دَ ظلم په سبب به زه څو تا ته نارې وهم او
ته به مې نه خلاصوې ۳ ته ولې ما ته بدې ښکاره کوې او په خپله به په ۳
بدو نظر کوې ځکه چه لوټ او ظلم څما دَ وړاند دي فتني ښتد او فساد
پورته کيږي ۴ دې دَ پارَ شريعت سُست شه او انصاف هرګز نه ۴
جارِي کيږي ځکه چه شريران رښتينو لره ګير کوي دي دَ پارَ عدالت
کوږ ووزي

۵ دَ غير قومونو په مينځ کښ وګورئ او و ئې وينئ او ډير تعجب ۵
وکړئ دي دَ پارَ چه زه ستاسي په ورځو کښ يو کار کوم چه که دَ هغه
بيان هرڅو تاسو ته وکړې شي نو تاسو به باور و نه کړئ ۶ ځکه ګورئ ۶
زه به کسديان را وخيژوم هغه تلخ او تند قوم دي چه دَ زمکي په ارتوالي
کښ تيريږي تا چه هغه آباد مکانونه چه دَ دوي نه دي واخلي ۷ هغوي ۷
داروڼکي او هيبت ناک دي دَ هغوي عدالت او دَ هغوي فتویٰ به له هغوي
نه ووزي ۸ دَ هغوي آسونه له پړانګانو هم ګړندي او له هغو ليوانونه ۸
چه نماښام ووزي هم زيات تُند دي او دَ هغو سواره غوړيږي هو
ددوي سواره له لري راځي هغوي دَ ګيدړ په دود چه په خپل خوراک
باندِ غوټه وکړي الوزي ۹ هغوي ټول وارِه دَ ظلم کولو دَ پارَ راځي دَ هغو ۹
مخونه دَ مشرقي باد غوندِ په وړاندِ ګوري او دوي بنديان دَ شګي په شان
جمع کړي ۱۰ هغه په بادشاهانو پوري ټوقي کوي او شاهزادګان دَ دوي ۱۰
دَ وړاندِ مسخره دي او هغه په هري قلعي پوري خاندي هغه له دوړو
باره وړنه جوړه کړي و ئې نيسي ۱۱ نو هغه به دَ باد په شان تير شي ۱۱

او هغه به پوري ځي ګرم به شِي هغه چه دَده قوّت دَده الله دَي
١٢ ١٢ اي ځما خداوندَ الله اي ځما قدّوسَ ته له ازل نه نه يي څه؟
مونږ به مړه نه شُو اي خداوندَ تا هغه دَ عدالت دَپارَ وړولي دَي او اي
١٣ کمره تا هغه دَ ترټني دَپارَ مقرّر کړي دَي ١٣ ستا سترګي داسي پاکي دِي
چه بدِي ته کتلي نه شي او ته په آزار نظر کولي نه شي نو بيا څله په
دي لوټونکو نظر کوي او هغه وقت چه شرير هغه سړي لره چه له ده
١٤ نه رښتني دَي نغرِي نو ته ولي چپ اوسي ١٤ او آدميان دَ سمندر دَ کبانو
په دود جوړوِي او دَ ځځيدنکِي په شان چه په دغو باندِ هيڅ حاکم نشته
١٥ ١٥ دَي هغوي ټول په کونډي ورپورته کوِي او په خپل جال کښ ئي نيسلوِي
او په ځکونکي جال کښ ئي جمع کوِي دي دَپارَ دَي خوښيي او خوشحالي
١٦ کوِي ١٦ څکه دَي خپل جال ته ذبح کوِي او په خپل ځکونکي جال ته
لُبان سيځي څکه چه دَ هغو په وسيلي سره دَده برخه څربه دَه او خوراک
١٧ ئي څورب دَي ١٧ دَي به دي دَپارَ خپل جال خالِي نه کوِي څه؟ او
مدام دَ قومونو له قتلولو نه شِي څه؟ ❖

## دويم باب

١ آزه به دَ خپل څارګاه باندِ ودرېږم او په برج باندِ به خپل ځان و
دروم او څار به کوم چه وګورم چه هغه به ما ته څه وايي او زه به
٢ دَ خپل فرياد په باب څه ځواب ورکړم ٢ نو خداوند ما ته ځواب راکړ او
وئي ويل چه دا رؤيا وليکه او په تختيو ئي داسي صاف ونبکه تا چه
٣ هغه چه زغلي و ئي لولِي ٣ ځکه چه دا رؤيا تر اوسَ پوري دَ يوه مقرّر
وقت دَپارَ دَه مګر آخر ته هيڅه وکړِي او دروغ به نه وايي اګر که معطّلي
وکړِي نو هم انتظاري کوه چه هغه به په يقين سره راشِي او درنګ به
٤ و نه کړِي ٤ ګوره مغرور دَ هغه ځان په کښ راست نه دَي مګر صادق
به په خپل ايمان سره ژوندي اوسِي
٥ ٥ هو بي له دي شراب تکونکي دِي سړي ور نه مغرور کيږي هغه

په خپل کور کښې نه اوسي هغه دَ دوزخ په دود خپل ځان ارتوي هغه
دَ مرګ په دود دَي چه نه آسوده کيږي بلکه ټول قومونه ځان ته جمع
کوي او ټول ټولي دَ ځان ته ټولوي ٦ آيا دا ټول به په ده سپک متل ٦
نه وايي څه ؟ او په پيچومي سره به اشارت و نه کړي څه ؟ او و به نه
وايي چه په ده ارمان دَي چه له هغه مال نه چه دَده نه دَه ترقي کوي
تر کومه پورې او په هغه باندې چه په خپل ځان باندې ډېر ګرو ليږدوي
٧ هغوي چه به وچيچي ناڅاپه به پورته نه شي څه ؟ او هغوي چه تا ته ٧
خپه کړي بيدار به نه شي څه ؟ او ته به دَ هغو دَپاره لوټ شي ٨ دي ٨
دَپاره چه تا ډېر قومونه لوټلي دي ټول پاتي شوي دَ خلقو به تا لوټ کاندې
دَ آدميانو دَ وينو تويولو او دَ ظلم په سبب چه په زمکه او په ښهرونو
او په ټولو اوسېدونکيو ئې وشول
٩ افسوس په هغه چا باندې چه دَ خپل کور دَپاره په بدي ګټې ٩
سره ګټه کوي تا چه خپله ځاله په لوړه جوړه کړي او چه دَ بدئ له
ورغوي نه خلاصون مومي ١٠ تا دَ ډېرو خلقو دَ بربکړلو په سبب دَ خپل ټبر ١٠
دَپاره شرم حاصل کړي دَي او خپل ځان دِ ګنهګار کړي دَي ١١ ځکه چه ١١
کاڼي به له ديوال نه ناري وکړي او ارکي به دَ شهتير له ميخ نه
ځواب ورکړي ١٢ هَي هَي په هغو باندې چه په خونريزي سره ښهر جوړوي او ١٢
په شرارت سره کلي آباد کوي ١٣ ګوريئ دا حال دَ لښکرو دَ رب له لوري ١٣
نه دَي څه ؟ چه خلق دَ اور دَپاره مشقت وکړي او قومونه دَ بطلان
دَپاره خپل ځانونه ستړي کړي ١٤ لکه چه اوبو قعر درياب پټوي هم ١٤
هسي به زمکه دَ خداوند دَ جلال له پيژاندلو ډکه شي
١٥ هَي هَي په هغه باندې چه پخپل همسايه باندې (شراب) څښي ١٥
او خپله ګرمي زياتوي هغه پرې کيفي کوي تا چه ته دَ هغه ستروني
ته دَ عزت په عوض کښې له رسوائي نه ډک شوي يي ته ئي وڅښه او ١٦
خپله څرمن بي پردي کړه دَ خداوند دَ ښي لاس پياله به درو ګرزولي

۱۷ شي او ستا په دبدبې به د شرمندګي ۱۷ څکه هغه ظلم چه په لُبنان
بانډِ وشوه تا به پټ کړي او د څناورو ښکار هغوي لره و ويرول
د آدميانو د خونريزي او د ظلم په سبب چه په ملک او په ښهرونو
او په ټولو اوسيدونکيو ئي وشه

۱۸ ۱۸ له تراشلي صورت نه څه فائده حاصليږي چه د هغه جوړونکي
په توږلو سره جوړ کړي دي له اچولي صورت نه هو له دروغژنو استاذ
(څه فائده ده) چه د کارجوړونکي په هغه بانډ توکل لري چه ګونګ

۱۹ بُتان جوړوي ۱۹ شي هي په هغه چه لرګي ته وايي چه ويښ شه او
بې ژبي کاڼي ته چه پاسه هغه را زده کړي ګوره هغه په سرو او سپينو زرو

۲۰ جړاؤ دي مګر د هغه په منځ کښ سطلق روح نشته ۲۰ مګر خداوند پخپل مقدس
هيکل کښ دي توله زمکه دِ د هغه د وړانډِ خاموشه شي ❊

## دريم باب

### د حبقوق نبي دُعا د سجيونوت

۱ اي خداوندَ ما ستا خبر آوريدلي
ده او ويريدلم
اي خداوندَ ته د کالونو په منځ
کښ خپل کار ته ژوندي کړه

۲ د کالونو په منځ کښ هغه ته
شهرت ورکړه
د قهر په منځ کښ رحمت په ياد
کړه

۳ الله له تيمانَ
او هغه چه قدّوس دي د فاران
له غره نه راغي سلاه
د هغه تمجيد آسمان پټ کړ
او زمکه د ده له حمد نه ډکه شوه

۴ د ده ځليدل د نور په دود وه
ده له لاسونو تجلي ووتلي
مګر هلته کښ د ده د قدرت پرده
وه

۵ مرګو د هغه د وړانډِ تله
او د ده په قدمونو کښ د اور
بريښنا روانه شوله

۶ هغه ودريده او زمکه ئي وخڅله
ده نظر وکړ او قومونه ئي تار په
تار کړل
او قديم غرونه ريزمريز شول

او زړي غونډي کوږي شولي
دَده لاري مدامي دي
٧ ما وليدل چه دَ کوشان په خيمو
باندِ عذاب وه
او دَ مديان دَ زمکي پردي لړزيدلي
٨ اي خداوندَ ته په دريابونو تود
شوي څه ؟
په دريابونو باندِ ستا قهر وه څه ؟
په قعرِ درياب ستا غضب وه څه؟
چه ته په خپلو آسونو او په خلاصونکيو
کاډيو باندِ سوار شوي
٩ ستا لنده بالکل لوڅه کړي شوه
ستا قسمونو دَ قومونو وَينا سلاه
تا زمکه په دريابونو سره وڅيرلي
١٠ غرونو ته وليدلي او ولړزيدل
سيلابونه دَ اوبو تير شول
ژورو خپل آواز هسک کړ
او خپل لاس ئي پورته اوچت کړ
١١ لمر او سپوږمۍ په خپل خپل مکان
کښي ودريدل
ستا دَ غشيو روښنائي ته چه تله
ستا دَ برچو دَ بريښنا و رونق ته
١٢ تا له قهر سره په زمکه درب وکړ
تا په قهر سره قومونه پايمال کړل
١٣ ته دَ خپل اُمّت دَ خلاصون ورکولو
دَپارَ وتلي
هو له خپل مسيح سره دَ خلاصون
ورکولودَ پارَ
تا دَ شرير دَ کور سر ژوبل کړ
ترغاړي پوري بنيادونه برښډول (سلاه)
١٤ تا دَ هغه په برچې سره دَده دَ بناغليو
سرونه سوري کړل
هغوي ما ته دَ پراګنده کولو دَپارَ
دَ ګرد باد غوندِ راووتل
دَ هغو فخر دا وه چه مسکينان به په
پټه سره ونغرو
١٥ ته په خپلو آسونو سره له سمندر
نه .
هو دَ ګڼو اوبو دَ موجونو له مينځ
نه تير شولي
١٦ ما اوريدل ځما لړمون رپيده
له هغه آواز نه ځما شونډي ـو
کړپيدلي
ځما هډونه تخا شول
زه په خپل مکان کښي ولړزيدلم
تاچه زه دَ غم په ورځ آرام بياموم
هرکله چه هغه چه په اُمّت وځيږي
په خپلو فوځونو سره داخليږي
١٧ هرڅوچه دَ انځيرونه نه وغوړيږي
او په تاکونو کښي ميوه ونه لګيږي

او دَ بنوون محنت لاړ شِي
او په پټيو کښ هيڅ غله پيدا نه شِي
او رمي په شپاله کښ پرېکړي شِي
او غوا او غوايان په غوجلو کښ پاتي
نه شِي
١٨ په دي به هم په خداوند خوښِي
وکړم
زه به دَ نجات دَ الله په سبب
خوشحاله يم
١٩ خاوند يهوَه خما قوّت دَي
او دَي به خما پښي دَ اوسئ
غوندِ کړي
او په ما باندِ چه خما په اوچتو
مکانو سيل وکړِي
دَ سرودګرو دَ سردار دَپارَ خما په
تاردارو سازنو باندِ ❊

# دَ صفنیاهِ نبي کتاب

## اول باب

١ دَ یهودہ دَ بادشاه یوسیاه ځوي دَ آمون په ورځو کښِ دَ خداوند کلام ١
چه صفنیاه ځوي دَ کوشِي ځوي دَ جدلیاه ځوي دَ امریاه ځوي دَ حزقیاه
ته ورسید؛ ٢ زه به دَ زمکي له مخ نه ټول واره نابود کړم خداوند فرمایي - ٢
٣ زه به انسان او حیوان نابود کړم دَ آسمان پرندګان او دَ قعرِ دریاب ماهیان ٣
او دَ شریرانو سره ټیندکونه به نیست او نابود کړم او انسان به دَ زمکي له
مخ نه پریکړم خداوند فرمایي ۴ او زه به په یهوداه او دَ اورشلیم په ټولو ۴
اوسیدونکیو خپل لاس وغزوم او له مکانَ به دَ بعل باقي خلق او دَ کماریم
نوم به له کاهنانو سره پریکړم ۵ او هغوي هم چه په بامونو دَ آسمان لښکر ته ۵
سجده کوي او هغوي چه سجده کوي په خداوند قسم خوري او په ملکام قسم
کوي ۶ او هغوي هم چه دَ خداوند له پیروي نه ګرزیدلي دي او هغوي چه ۶
خداوند ئې لټولي نه دَي او طلب ئې کړي نه دَي ٧ تاسو دَ خاوند یهوَه په حضور ٧
چپ اوسيِ ځکه چه دَ خداوند ورځ نژدي دَه ځکه چه خداوند دَ ذبحي طیارِي
کړي دَه او خپل چه ده بللي شوي میلمانه ئې پاک کړي دي ٨ او دَ خداوند ٨
دَ ذبحي په ورځ به داسي وشي چه زه به امیرانو او شاهزادګانو او
هغوي ټولو ته چه دَ بیګانهٔ پوشاک آغوندي سزا ورکړم ٩ زه به په هغي ٩
ورځي هغو ټولو ته چه په آستانې باندِ په ټوپونو ځي او دَ خپل خاوند
کورونه له ظلمَ او له مکرَ ډکوي سزا ورکړم ١٠ او په هغه ورځ به داسي ١٠
وشي خداوند فرمایي چه دَ ماهي له دروازي نه دَ ژړا آواز او له دویمي
دروازي نه دَ هي هي او له غونډیو نه دَ لوي کړپهار آواز به وي ١١ اي دَ ١١
مکتیس اوسیدونکیو هي هي کوئ ځکه چه ټول کنعانیان ورک شول هغوي
چه په سپینو زرو لیښلي وي پریکړي شول ١٢ او هغه وقت به داسي ١٢

وشي چه زه به په چراغ سره دَ اورشليم تالاش وکړم او هرڅو چه
په خپلو تهٔنشينو کښکل شوي دي او په زړه خپل کښ وايي چه خداوند
۱۳ به نه ښه وکړي نه به بد وکړي زه به سزا ورکړم ۱۳ نو به دَ هغو دولت
دَ لوټ دَپارَ شي او کورونه به ئي ويجاړ شي هغوي خو به کورونه جوړ
کړي مګر استوګنه به په کښ ونه کړي او تاکستانونه و لګوي مګر شراب
۱۴ به ئي ونه څښي ۱۴ دَ خداوند لويه ورځ نژدي دَه او ډيره جلتي کوي هو دَ
خداوند دَ ورځي آواز هلته کښ به زبردست سړي په ورپ ورپ ژاړي -
۱۵ ۱۵ هغه ورځ دَ قهر ورځ دَه دَ عذاب او دَ رنځ ورځ دَ ويراني او دَخرابي
ورځ دَ تاريکي او دَ تورتم ورځ دَ وريځي ورځ او دَ ګنړي تياري ورځ
۱۶ ۱۶ په مضبوطو ښهرونـــو باندِ او په اوچتو برجونو دَ قرنا او دَ جنګي غوږ
۱۷ ورځ ۱۷ او زه به په انسان باندِ تنګي راولم ترديحده چه دَ ړندو
په دود به تېريږي ځکه چه دوي دَ خداوند ګنهګار شول دَ هغوي وينې
۱۸ به دَ دوړو په دود وبهيږي او غوښې به ئي دَ غوښيو په شان ۱۸ دَ خداوند
دَ قهر په ورځ کښ به نه دَ هغو سپين نه دَ هغو سرو زر خلاصون
کړي مګر ټوله زمکه به دَده دَ غيرت له اوره وخوړلي شي ځکه چه
هغه به يوي خوفناکي تماميدني سره دَ زمکي ټول اوسيدونکي تمام کاندِ +

## دويم باب

۱ ۱ خپل ځانونه جمع کړئِ هو را جمع شئِ اي بي شرمه قومه وړاندِ له هغه
چه تقدير وزيږي (وړاندِ) له هغه چه هغه ورځ دَ خس په شان تيره شي
وړاندِ له هغه چه دَ خداوند سخت قهر په تاسو نازل شي وړاندِ له هغه
۳ نه چه دَ خداوند دَ غضب ورځ په تاسو راشي ۳ اي دَ ملک ټولو حليمانو
چه دَده په عدالت عمل کوئِ تاسو خداوند و لټوئِ صداقت ولټوئِ دَ عاجزئ
طلب وکړئِ ګندِ چه تاسي دَ خداوند دَ غضب په ورځ پټ شئِ
۴ ۴ ځکه چه غزه به ترک کړي شي او عسقلون به يوه ويرانه شي
او اشدود چه دَي دَ ورځي په غرمه کښ به ئي و باسي او عقرون به له

٥ بَخ وِيوست شِي ٥ دَ سمندر دَ غاړي په اوسيدونکيو دَ قريتيانو په قوم
باندِ هَي هَي دَي دَ خداوند کلام ستاسو په خلاف دَي اي کنعانَ دَ
فلستيانو زمکي زه به تاسو نيست کړم څو چه څوک اوسيدونکي پاتي نه شِي
٦ ٦ او دَ سمندر غاړي به دَ څراګاهو او دَ شپنو څيودي او دَ درمو شپولونه شِي
٧ ٧ او هغه غاړه به دَ يهوداه دَ کور دَ باقيه دَپارَ شِي دوي به په هغو کښ
څَرِي هغوي به دَ ماښام په وقت دَ عسقلون په مکانونو پنډيږي څکه چه
خداوند دَ هغو الله به دَ هغو بازخواست وکړِي او دَ هغو بنديواني به را وګرزوِي
٨ ٨ ما دَ موآب ملامت او دَ بني عمون طعني واوريدل چه دوي څما قوم
٩ ملامت کړي دَي او دَ هغو دَ سرحدونو په مخالفت کښ کبر کړي دَي ٩ دي
دَپارَ خداوند دَ فوځونو دَ اسرائيل الله زه ژوندي يم فرمايلي ئي دِي په يقين
سره په موآب دَ سدوم په دود شِي او بني عمون به دَ عموره په دود ملک
دَ جلبنګ او مالګينه او هميشه ويراني به شِي څما دَ خلقو پاتي شوِي به
١٠ ئي لوټ کړِي او څما دَ قوم باقيه به دَ دوي وارثان شِي ١٠ دا به په دوي باندَ
دَ دوي دَ مغروري په سبب پيښ شِي څکه چه دوي دَ لښکرو دَ خداوند
دَ اُمت ملامتيا کړي دَه او دَ هغو په خلاف ئي څانونه هسک کړي دِي -
١١ ١١ خداوند به دَ هغو دَپارَ هيبتناک وِي څکه چه ټول معبودان دَ زمکي به
دنګر کړِي او هر څوک به له خپل خپل ځاي نه هو دَ غير قومونو جزيرو
ټول سرِي به دَ هغه عبادت وکړِي
١٢ ١٣ ١٢ تاسو به هم اي دَ کوشيانو څما په توري مړه شِئ ١٣ او دي به
دَ قطب په طرف خپل لاس اوږد کړِي او آسور به خراب کړِي او نينوه به
١٤ ويرانه او دَ بيابان په شان وچه کړِي ١٤ او دَ هغو په منځ کښ به پادي هو
دَ قومونو ټول حيوانان به پنډيږي او کوتني او سکاڼړه دَ هغو دَ ستنيو په
څنتيو مقام وکړِي آواز به په دريڅو کښ چيغِږي دَ هغو به دهليزونو کښ به
١٥ ويراني وِي څکه چه هغه ددېودار کار لوڅ کړي دَي ١٥ دا هغه خوشحال ښهر
دَي چه بې فکرَ اوسيده چه پخپل زړه کښ ئي وَوِ چه زه يم او بي له ما نه بل

هیڅوک نشته نو هغه ځنګ به ویرانه شه دَ حیوانانو دَ پنډیدلو ځاي هر
یو چه په هغه لورِي تیر شِي شپیلکي به کړِي او خپل لاس به وخوځوِي

## دریم باب

۱ آ هَي هَي اي ظالمه ښهره ته چه باغِي او پلیت یي ۲ دَه کلام نه واورېده او
تعلیم اخستونکي نه شه په خداوند ئي توکل ونه کړ او خپل الله نه نژدي
۳ نه شه ۳ دَ هغه په منځ کښ دَ هغه سرداران غړچیدونکي زمرِي دِي
۴ قاضیان ئي دَ نماښام لیوان دِي او ترصباح پورِي نه هیڅ پرېږدِي ۴ دَ هغه
نبیان لافي وهونکِي او دغاباز دِي کاهنانو ئي مقدّس ناپاک کړِي دَي دوي
۵ له تورات نه مخالفت کړِي دي ۵ خداوند چه صادق دَي دَ هغه په منځ
کښ دَي هغه به بدي ونه کړِي: دي هر صباح خپل عدالت روښنائِي
۶ ته راوړِي په ده کښ نشته مګر بي‌انصاف شرم نه پيژني ۶ ما قومونه
پرېکړل دَ هغو برجونه برباد شوِي دِي ما دَ هغو کوڅي ویرانې کړِي دِي چه
په هغو کښ هیڅوک نه ځي دَ هغو ښهرونه ویجاړ شول داسي چه هیڅ انسان
۷ نشته هیڅ اوسیدونکي نشته ۷ ما ووِې چه ته خاص له ما نه ویرېږه ته
نصیحت قبول کړه داسي چه د هغه استوګنه پرېکړه نه شي د هغو
ټولو په شان چه ما دَ هغه په حق کښ مقرّر کړل مګر هغوي وختي
پاڅیدل خپل ټول عملونه ئي خراب کړل
۸ ۸ سره دَدي تاسو ځما په انتظار کښ اوسئِ خداوند فرمائِي ترهغي
ورځي پورِي چه زه دَ لوټ دَپارَ پورته شم ځکه چه ځما قصد دَي چه قومونه
جمع کړم او بادشاهتونه یو ځاي کړم تا چه زه خپل غضب هو ټول
سخت قهر په هغوي توي کړم ځکه چه ځما دَ غیرت له اورَ به ټوله
۹ زمکه ونغردلي شي ۹ ځکه چه زه به هغه وقت ټول خلق یوي پاکي ژبي
ته وګرزوم تا چه هغوي ټول واړه دَ خداوند نوم بولِي او په یوي اوږي
۱۰ سره دَده عبادت کوِي ۱۰ دَ کوش دَ رودونو له پورِي خوا نه به ځما عبادت
۱۱ کونکِي هو ځما دَ پراګنده خلقو لور به ځما دَپارَ هدیي راولي ۱۱ هغه ورځ

به نه دَ ټولو کارونو په سبب چه په هغو سره ځما تقصیروار شولې شرمنده
به نه شې ځه؟ ځکه چه زه به هغه وقت ستا له مینځ نه هغوي چه ستا
په لوئي فخر کوي وباسم او ته به بیا ځما په پاک غره باندې کبرجنې و نه کړې
۱۲ او زه به یو غریب او مسکین قوم ستا په مینځ کښ پرېږدم او هغوي به دَ ۱۲
خداوند په نوم توکّل وکړي ۱۳ دَ اسرائیل باقیه به بدکاري و نه کړي او دروغ ۱۳
به نه وائي او دَ دوي په خولې کښ به فریب ژبه مونده نه شي بلکه دوي
به څري او څملي به: او هیڅوک به ئې نه ډاروي
۱۴ اي دَ صیحون لوري سندري وایه اي اسرائیلَ ناري وهه ۱۴
اي دَ اورشلیم لوري ته په ټول زړه خپل سره خوښي او خوشحالي کوه
۱۵ خداوند ستا فتویٰ در نه اخستلي دَه ستا دښمن یستلي دَي ۱۵
خداوند دَ اسرائیل بادشاه ستا په مینځ کښ دَي ته به بیا له بدئ
و نه وېرېږې ۱۶ هغه ورځ به اورشلیم ته ووئیل شي چه ته مه ۱۶
دارېږه او صیحون ته چه ستا لاس دې سُست نه شي ۱۷ خداوند ستا ۱۷
الله چه ستا په مینځ کښ دَي قادر دَي هغه به دې خلاص کړي هغه به
ستا په سبب خوشحال شوي خوښي به کوي دَ خپل محبّت په سبب به
خاموش اوسي هغه به په تا په سندرو ویلو سره خوشحالي وکړي
۱۸ زه به هغوي چه دَ مقدّس جماعت غمګین دي چه له تا ؤو چه ۱۸
په هغو باندې دَ ملامتیا بار وه جمع کړم ۱۹ ګوره زه به هغه ۱۹
وقت هغوي ټولو سره چه تا آزاروي کار وکړم او هغه چه پس‌مانده
دَه خلاصه به ئې کړم او خارج کړي شوي به یو ځاي کړم او په
هري یوي زمکې کښ چه دوي رسوا شوي ؤو هغوي به ثنا او نامدار
کړم ۲۰ هغه وقت به زه تاسو جمع کړم هغه وقت به مو بیرته ۲۰
راولم ځکه هغه وقت چه ستاسو دَ سترګو دَ وړاندې ستاسي
بندیوانۍ را وګرزوم تاسو به دَ زمکې ټولو قومونو په مینځ کښ ثنا
او نامدار کړم خداوند فرمائي ❊

# دَ حِجي نبي كتاب

## اول باب

١ آ دَ دارا بادشاه دَ بادشاهِي په دويم كال په شپږمي مياشتي او دَ
هغي مياشتي په ورمبي ورځ دَ شيالتِي ايل ځوي زروبابل ته چه دَ
يهوديانو امير وه او دَ يهوصادق ځوي يهوشع ته چه سردار كاهن وه
٢ دَ خداوند كلام دَ حِجي نبي په لاس ورسيده ٢ او وئي ويل چه خداوند
دَ لښكرو داسي وايِي چه دا خلق وايِي چه هغه وقت چه دَ خداوند
٣ كور به بنا كړي شِي هغه وقت لا تر اوسَ پوري راغلي نه دَي ٣ نو
٤ دَ خداوند كلام په حِجي نبي نازل شه ٤ او وئي وِ چه هو ستاسو وقت
دَي څه ؟ چه په خپلو كورونو كښ چه په ديوالونو ئي تخته بندِي كړي
٥ ده واوسئِ او دا كور ويران پروت وِي ؟ ٥ او اوس خداوند دَ لښكرو
٦ داسي وايِي چه تاسو په خپلو لارو باندِ خپل زړه كيږدئِ ٦ تاسو ډېر څه
وكرل مګر لږ حاصل كوئِ تاسو خورئِ مګر نه آسوده كيږئِ تاسو څښئِ
مګر په اوبو نه ډكيږئِ تاسو جامي آغوندئِ مګر هيڅوک نه تودېږئِ او
هغه چه مزدورِي كوي نو مزدورِي كوِي تاچه په سورئِ ثوي كښي
٧ كښ كيږدِي ٧ خداوند دَ لښكرو فرمايِي چه تاسي په خپلو لارو خپل
٨ زړه كيږدئِ ٨ په غره وخيژئِ لرګي راوړئِ او كور جوړ كانړئِ زه به په
٩ هغه خوشحالَ شم او ځما تعظيم به وكړي شِي خداوند فرمايِي ٩ تاسو
دَ ډېرو انتظار وكړ او كورئِ لږ څه او هركله چه تاسي په هغه كور
كښ راوړل نو ما په هغه ور پو كړل خداوند دَ لښكرو فرمايِي ولي ؟
له دي سببَ چه ځما كور ويران دَي او له تاسو نه هريو دَ خپل
١٠ خپل كور ته زغلِي ١٠ دي دَپارَ آسمان په تاسو بند دَي چه شبنم
١١ نه پريوزِي او زمكه له خپلو حاصلو وركولو منع شوه ١١ او ما وچ

کالي و بلله په زمکه باندِ او په غرونو باندِ او په غلو او په نويو شرابو
او په تيلو او په هرڅه چه له خاوري ووځي او په انسان او په
۱۲ حيوان او په ټول محنت دَ لاسونو باندِ ۱۲ نو زروبابل زوي دَ شيالتي‌ايل
او يهوشوع ځوي دَ يهوصادق سردار کاهن او ټول باقي خلق دَ قوم دَ
يهوه الله خپل آواز او دَ حجي نبي کلام لکه چه خداوند دَ هغو الله ور
۱۳ استولي وه اوريدونکي شول او خلق دَ خداوند په حضور وويريدل ۱۳ نو
دَ خداوند پيغمبر حجي دَ خداوند په پيغام سره هغه قوم ته وويل چه
۱۴ خداوند فرمايي چه زه له تاسو سره يم ۱۴ بيا خداوند زروبابل ځوي دَ
شيالتي‌ايل دَ يهوده دَ امير روح او دَ يهوشع ځوي دَ يهوصادق سردار
کاهن روح او دَ باقي خلقو روح بيدار کړ نو دوي راغلل او دَ لښکرو
۱۵ خداوند دَ خپل الله په کور کښ کار وکړ ۱۵ دَ دارا بادشاه په دويم
کال دَ شپږمي مياشتي په څلېريشتمي ورځي دَ مياشت +

## دويم باب

۱ ۱ په اومه مياشت او دَ هغي مياشتي په يو ويشتم تاريخ دَ خداوند
۲ کلام دَ حجي نبي په لاس را ورسيد ۲ او وئي ويل زروبابل ځوي دَ
شيالتي‌ايل دَ يهوديانو امير ته او يهوشع ځوي دَ يهوصادق سردار
۳ کاهن ته او دَ قوم باقي خلقو ته وفرمايه او داسي ووايه ۳ چه له
تاسو نه څوک باقي شوي دَي چه دغه هيکل ئي په هغه وړاندني رونق
وليد او دا څه رنګ دَي چه اوس ئي وينئ دغه ستاسو په نظرونو
۴ کښ ناڅيز نه ښکاريږي څه؟ ۴ مګر اي زروبابل مضبوط شه
خداوند فرمايي او اي يهوشع دَ يهوصادق سردار کاهن زويه
مضبوط اوسه او اي دَ زمکي ټولو خلقو مضبوط اوسئ خداوند
فرمايي او کار کوئ ځکه چه زه له تاسي سره يم خداوند دَ لښکرو
۵ فرمايي ۵ لکه چه دَ هغه عهد کلام چه ما له تاسو سره دَ مصر
دَ وتلو په وقت کښ وکړ هم هسي ځما هغه روح تاسو په مينځ کښ

۶ اوسي مه ويرېږئ ۶ څکه چه خداوند دَ لښکرو داسي فرمايي چه
اوس يو وار او لږ څه مُده زه به آسمانونه او زمکه او قعرِ درياب
۷ او وچه وخوځوم ۷ بلکه زه به ټول قومونه وخوځوم او دَ ټولو قومونو
مراد به راشي او زه به دا کور له لوئي نه ډک کړم خداوند دَ
۸ لښکرو فرمايي ۸ سپين زر څما دِي او سره زر څما دي خداوند دَ
۹ لښکرو فرمايي ۹ دَدي وروستني کور جلال به له وړاندني نه زيات
لوي شي خداوند دَ لښکرو فرمايي او زه به دي مکان به سلامتي
۱۰ وبخښم خداوند دَ لښکرو فرمايي ۱۰ او دَ دارا بادشاه په دويم کال
کښ او دَ هغه دَ نهمي مياشتي په څليرويشتم تاريخ دَ خداوند کلام
۱۱ دَ حجي نبي په لاس را ورسيد ۱۱ او وئي ويل چه خداوند دَ لښکرو
۱۲ داسي وايي دَ شرعي په باب له کاهنانو دريافت وکړه او وايه ۱۲ چه
که کوم سړي پاکي غوښي دَ خپل جامي په لمني کښ واخلي او په
خپلي لمني ډوډي يا آش يا شراب يا تيل يا کوم قسم دَ خوراک
مسه کړي نو هغه څيز به پاک شي څه ؟ نو کاهنانو ځواب ورکړ وئي
۱۳ ويل چه نه ۱۳ بيا حجي ووِ چه که څوک دَ کوم مردار مسه کولو په سبب
ناپاک شوي وي او له دغو نه په کوم يوه ولگيږي نو ناپاک به شي؟
۱۴ کاهنانو ووِ هو ناپاک به شي ۱۴ بيا حجي ځواب ورکړ وئي ويل چه
خداوند فرمايي چه دَدي قوم او دَدي ټولي حال څما په نظر کښ هم
داسي دَي او دَ دوي دَ لاسونو هر يو کار هم هسي دَي او هم هغه څه
۱۵ چه وئي گذاري ناپاک دَي ۱۵ او اوس په خپلو زړونو کښ غور وکړئ
که نه له دي ورځي نه او له هغه نه په مخ کښ وړاندِ له هغه چه
۱۶ دَ خداوند په هيکل کښ کاڼي په کاڼي ايښي شوي وه ۱۶ له هغو
ورځو نه داسي وشول چه هرکله چه کوم سړي دَ شلو اوړيو انبار
ځخه ورغي نو تش ئي لس وموندل او چه تالاؤ ځخه ورغي چه پوره
۱۷ پنځوس لوښي ډک کړي نو هله ئي شل وموندل ۱۷ ما تاسي په کړمِ باد

او په زيري او په ږلو سره ستاسي دَ لاسونو ټول کارونه ووهل مګر
۱۸ تاسي ځما په لوري نه وګرځيدلئِ خداوند فرمايي ۱۸ له نن نه او له
دغه په مخکښ غور وکړئِ دَ نهمي مياشتي څليرويشتم له ورځي نه
يعني له هغي ورځي چه دَ خداوند دَ هيکل بنياد واچاوه شه غور
۱۹ وکړئِ ۱۹ اوس تخم په کندوانو شته هو لا تر اوسه به تاک او دَ
انځير او دَ انار او دَ زيتون ونې ميوې راوړي نه دَه مګر له نن
نه به تاسو ته برکت درکړم
۲۰ ۲۰ بيا دَ هغي مياشتي په څليرويشتم تاريخ دَ خداوند کلام
۲۱ حجي نبي ته ورسيده او وئي ويل ۲۱ چه دَ يهوديانو امير زروبابل
۲۲ ته ووايئِ چه زه به آسمان او زمکه وخوځوم ۲۲ او دَ بادشاهتونو تخت
به واړوم او دَ غير قومونو دَ بادشاهتونو قوّت به ورک کړم او ګاډئِ
به دَ هغو له سوارو سره واړوم او آسونه او چه په هغو سواره
۲۳ دِي پري به وزِي هر يو سړي به دَ خپل ورور له توري ۲۳ خداوند
دَ لښکرو فرمايي چه اي ځما بنده زروبابل ځوي دَ شيالتي ايل هغه
ورځ به زه تا واخلم خداوند فرمايي او دَ غمي په دود به دِ جړاؤ کړم
دي دَپارَ چه نه مِ غوره کړي يې خداوند دَ لښکرو فرمايي ❊

# دَ ذکریّاه نبِي کتاب

## اول باب

۱ آ دَ دارا دَ دویم کال په آتمي میاشتي کښ دَ خداوند کلام و ذکریّاه زوي
۲ دَ برکیاه زوي دَ عدّو نبي ته ورسیده وئي ویل ۲ چه خداوند ستاسي
۳ له پلرونو او نیکونو ډیر غصّه شه ۳ دي دَپارَ ته هغوي ته ووایه چه
خداوند دَ لښکرو داسي وايي چه تاسي خما په لوري وګرزئ خداوند
دَ لښکرو فرمايي نو زه به ستاسي په لوري وګرزم خداوند دَ لښکرو
۴ فرمايي ۴ تاسي دَ خپلو پلرونو او نیکونو په دود مه کیږئ چه دوي
ته وړاندنیو نبیانو په نارو سره ویلي دِي چه خداوند دَ لښکرو داسي
فرمايي چه تاسي له خپلو بدو لارو او له بدو کارونو بیرته راشئ
۵ لیکن دوي نه واوریدل او نه ئي غوږ راته ونیو خداوند فرمايي ۵ ستاسي
۶ پلرونه نیکونه چرته دِي او نبیان مدام ژوندي دِي څه ؟ ۶ لیکن خما
هغه خبري او خما هغه حکمونه چه ما خپلو غلامانو نبیانو ته وفرمایل
کنږه هغه ستاسي تر پلرونو او نیکونو ونه رسیدل څه ؟ او دوي
وګرزیدل او وئي ویل چه خداوند دَ لښکرو لکه چه دده اراده وَه
چه دَ مونږ سره وکړي نو هسي ئې دَ مونږ دَ لارو او دَ مونږ دَ عملونو
په موافق له مونږ سره ئي کړي دِي
۷ ۷ دَ دارا دَ دویم کال او دَ یولسمي میاشتي په څلیرویشتم تاریخ چه
دَ شباط میاشت دَه دَ خداوند کلام ذکریّاه زوي دَ برکیاه زوي دَ عدّو
۸ ته ورسیده وئي ویل ۸ چه ما دَ شپي ولید چه یو سړي په یو سره آس
سوار شوي دَ اوښښتي په منځ کښ چه په سیوري کښ وي ولاړ دَی
۹ او دَ هغه دَ وروستو سره او سکاڼږه او نقري آسونه وُو ۹ نو ما
وویل چه اي خما خاوندَ داڅه دِي ؟ بیا هغي فرښتي چه له ما سره

ئې خبري کولي راته وويل چه زه به ئې تا ته در وښيم چه دا څه دي
۱۰ او هغه سړي چه دَ اوبښتو په منځ کښ ولاړ وه په ځواب کښ ئې
وويل چه دا هغوي دي چه خداوند استولي دي چه په ټولي زمکي وګرزي
۱۱ او هغوي دَ خداوند هغي فرښتي ته چه دَ اوبښتي دَ ونو په منځ
کښ ولاړه وه په ځواب کښ وويل چه مونږ په ټولي زمکي کښ
۱۲ ګرزيدلي يُو او ګورئ ټوله زمکه ناسته دَه آرام کوي ۱۲ بيا دَ خداوند
فرښتي ځواب ورکړ وئي ويل چه اي خداوندَ دَ لښکرو ته به اورشليم
او دَ يهوداه په ښهرونو چه په هغوي دِ له اوياؤ کالو نه غضب
۱۳ نازل کړي دَي ترځو پوري به رحم ونه کړي ۱۳ او خداوند دَ هغي
فرښتي ته چه له ما سره ئې خبري کولي په نيک کلام او دَ تسلي په
۱۴ کلام ځواب ورکړ ۱۴ نو هغي فرښتي چه له ما سره ئې خبري کولي
راته وئي ويل چه ته په نارو سره ووايه چه خداوند دَ لښکرو داسي
وايي چه ما ته دَ اورشليم او دَ صيحون دَپارَ غيرت راځي بلکه لوي
۱۵ غيرت ۱۵ او زه له هغو غير قومونو چه په آسودګي کښ دي په لوي
غصي سره غصه يم ځکه چه زه لږ څه غصه شوم او هغوي
۱۶ دَ هغه آفت مدد وکړ ۱۶ دي دَپارَ خداوند داسي فرمايي چه زه
په رحمتونو سره به اورشليم کښ بيرته راغلي يم په هغه کښ
به ځما کور جوړ کړي شي خداوند دَ لښکرو فرمايي او يوه رسئ
۱۷ به په اورشليم وغځوله شي ۱۷ بيا په نارو سره ووايه چه خداوند
دَ لښکرو داسي فرمايي چه ځما ښهرونه به په نيکي سره بيا مالامال
شي ځکه چه خداوند به بيا صيحون ته تسلي وبخښي او بيا به
اورشليم غوره کړي
۱۸ ۱۸ ما بيا خپلي سترګي پورته کړي او نظر مي وکړ او ګورئ
چه څلور ښکرونه وُو او ما هغي فرښتي ته چه له ما سره ئې
۱۹ خبري کولي وويل چه دا څه دي ؟ هغي ما ته ځواب راکړ چه دا هغه

ښکرونه دي چه یهوداه او اسرائیل او اورشلیم ئي پراګنده کړل -
۲۰ بیا خداوند ما ته څلور لوهاران راښکاره کړل نو ما وویل چه دا ۲۰
خلق دَ څه کولو دَپارَ راغلي دِي ۲۱ ده په خبره وویل چه دا هغه ۲۱
ښکرونه دِي چه یهوداه ئي پراګنده کړي دي داسي چه هیڅ سړي
هم خپل سر پورته کړي نه شه لیکن دغه دي دَپارَ راغلي دِي چه
هغوي ودارِوي او دَ غیر قومونو ښکرونه چه دَ یهوداه په زمکه
ئي دَ پراګنده کولو دَپارَ خپل ښکر پورته کړي دَي و پرزوِي ٭

## دویم باب

آ بیا مِ خپلي سترګي پورته کړي او و مِ کتل او څه ګورم چه یو سړِي ۱
دَ کچلو رسئِ په لاس کښ دَه ۲ او ما ورته وُوِ چه ته چرته ځي؟ ۲
هغه راته وویل چه دَ اورشلیم و کچلو ته تاچه ووینم چه دَدغه
پلن والي څو دَي او اوږدوالي څو دَي ۳ او ګورِي هغه فرشته چه له ۳
ما سره ئي خبري کولي ووتله ۴ بله فرښته دَ هغي ومخي ته راغله ۴
او ورته وئي ویل چه دو کړه او دَ دغه ځوان سره خبري وکړه ور ته
ووایه چه اورشلیم به دَ هغو ښهرونو په دود آباد شِي چه ښهرپناه
ئي نه وِي دَ انسان او دَ حیوانانو دَ کثرت په سبب چه په هغه کښ
به وشِي ۵ ځکه چه خداوند فرمائِي چه زه به دَ هغه دَپارَ له ګیر ۵
چاپیر دَ اور دیوال شم او دَ هغه په منځ کښ به مجد شم
۶ هاها دَ قطب له زمکي وتښتئِ خداوند فرمائِي ځکه ما ته ۶
دَ آسمان دَ څلورو هواؤ په دود وغږولي خداوند فرمائِي ۷ اي صیون ۷
ته چه دَ بابل دَ لور سره اوسي خپل ځان خلاص کړه ۸ ځکه چه ۸
خداوند دَ لښکرو داسي فرمائِي چه پس له مجید نه هغه زه و
هغو قومونو ته واستولم چه تاسو ئي لوټ کړلي په حقیقت هرڅوک
چه تاسو مسه کِوي ځما دَ سترګي کسَي مسه کوِي ۹ ځکه ګوره زه به ۹
په هغو باندِ خپل لاس وخوځوم او دوي به دَخپلو غلامانو دَپارَ

لوټ شي پس له هغه به تاسي پوه شئ چه زه خداوند دَ لښکرو
۱۰ را استولي يم ۱۰ اي دَ صيحون لوري ته سندري وايه او خوښي کوه ځکه
کوره چه راځم او ستا په منځ کښ به استوګنه کوم خداوند وائي
۱۱ ۱۱ او هغه ورځ به ډير قومونه له خداوند سره پيوسته شي او دوي
به زما اُمّت وِي او زه به ستا په منځ کښ اوسم او ته به پوه شي
۱۲ چه خداوند دَ لښکرو زه تا ته دراستولي يم ۱۲ او خداوند به يهوداه لره
په مقدّسه زمکه کښ خپله ميراثي بخره واخلي او اورشليم به بيا
۱۳ غوره کړي ۱۳ اي ټولو خلقو دَ خداوند دَ وړاندِ چپ اوسئ ځکه
چه دي له خپل مقدّس مکان نه وِيښ کيدونکي دَي ٭

## دريم باب

۱ ۱ او هغه ما ته را وښيله سردار کاهن يهوشوع دَ خداوند دَ فرښتي
دَ وړاندِ ولاړ دَي او شيطان دَ هغه په ښي لاس ولاړ دي چه دَده
۲ مقابله وکړي ۲ او خداوند شيطان ته وويل چه اي شيطانه خداوند
دِ تا ملامت کړي هو هغه خداوند چه اورشليم ئي غوره کړي دَي
تا دِ ملامت کړي کنړه دا يوه شوغلئ نه دَه چه له اور نه را نيولي
۳ شوي دَه څه ؟ ۳ او يهوشوع کنده جامي اغوستي دَ فرښتي دَ وړاندِ
۴ ولاړ وه ۴ بيا هغه ځواب ورکړ او هغوي ته چه دده دَ وړاندِ ولاړ
وُو وئي ويل چه کنده جامي له هغه وباسئ نو هغه وويل چه
کوره ما ستا بدکاري له تا نه لري کړي دَه او زه به تا ته قيمتي
۵ پوشاک درواغوندم ۵ او ما وويل چه دَ هغه په سر باندِ يوي پاکه
پګړئ کيږدئ پس هغوي دَ هغه په سر باندِ پاکه پګړئ کيښوده
او جامي ئي ور واغوستلي او دَ خداوند فرښته (دَ هغه څنګه) ودريده
۶ ۶ او دَ خداوند فرښتي يهوشوع ته په تاکيد سره وويل ۷ چه
خداوند دَ لښکرو داسي فرمائي چه که ته زما په لارو لاړ شي
او زما امانتونه وساتي نو ته به زما په کور حکومت وکړي او زما دَ

غوليو ساتنه به وکړي او زه به تا له دَ دغو په مينځ کښ چه دلته
کښ ولاړ دِي داسي ځاي درکړم چه ته په کښ دروميٓ ۸ اوس اي ۸
يهوشوع سردار کاهنه واوره ته او ستا رفيقان چه ستا دَ وړاندِ
ناست دِي ځکه چه دا سړي دَ نخښي په طور دِي چه ګوره زه به خپل
بنده ښاخ راولم ۹ ځکه چه هغه کاڼيَ چه ما دَ يهوشوع دَ وړاندِ ۹
ايښي دَي ګوره هم په هغه يوه کاڼي به اوه سترګي وِي ګوره زه به
دَ هغه نقش وکنم خداوند رب دَ لښکرو فرمايِي او زه به دَدي زمکي
دَ بدکارِي هم په يوی ورځي کښ لرِي کړم ۱۰ په هغي ورځي خداوند ۱۰
دَ لښکرو فرمايِي چه له تاسي نه به هر يو سړي دَ تاک دَ لاندِ او تر
انځير دَ لاندي خپل همسايه را وبولِي ٭

# څلورم باب

۱ او هغه فرښته چه له ما سره يِ خبري کولي بيا راغله او لکه چه ۱
څوک له خوب نه وېښ کېږِي هم هسي هغي وېښ کړم ۲ او ما ته ۲
چه ته څه وينِي وم ويل
يِ وويل چه ما ليدلي دَيَ او ګوره يو شمعدان بالکل دَ سرو زرو
او دَ هغه په سر باندي يو کټوري دَي او په هغه باندِ اوه چراغونه
او دَ هغو اوو چراغونو چه په هغو باندِ دِي اوه شپيلۍ چه دَ
هغو په سر باندِ دِي ۳ او هغه ته نژدي دوه دَ زيتون وني يوه ۳
چه ده دَ کټورِي په ښي لورِي او بله دَ هغه په کيڼ لورِي ۴ او ۴
ما هغي فرښتي ته چه له ما سره يِ خبري کولي ځواب ورکړ و مِ
ويل چه اي څما خاوندَ دا څه دِي ؟ ۵ نو هغي فرښتي چه له ما ۵
سره يِ خبري کولي ځواب راکړ و يِ ويل ګنړه ته نه پوهيږِي څه؟ چه
دا څه دِي ؟ ما وويل نه اي څما خاونده ۶ نو هغي ما ته ځواب راکړ ۶
زور سره او نه خو په
و يِ ويل چه دا دَ زروبابل دَ پارَ دَ خداوند کلام دَيَ چه نه خو په
قوّت سره بلکه څما په روح سره خداوند دَ لښکرو فرمايِي ۷ اي لويه ۷
غرِه ته څه يِي ته دَ زربابل دَ وړاندِ به يو ميدان شي او هغه به دَ

٨ سر کاڼي په نارو سره راوباسي چه فضل فضل هغه له ٨ بیا دَ
٩ خداوند کلام ما ته وشه ٩ او وئي ويل چه دَ زروبابل لاسونو دَدې
کور بنیاد کښېښودلي دَي او دَ هغه لاس به ئي تمام کړي پس به
١٠ ته وپوهيږې چه خداوند دَ لښکرو زه تاسو ته استولي يم ١٠ ځکه څوک
دَي چه دَدې وړوکيو څيزونو دَ ورځې سپکه ئي کړې دَه هغوي به
خوشحاله شي او دَ زروبابل په لاس کښ دَ سکې کاڼي به ووينې هو
هغه اوه چه دَ خداوند سترګي دِي چه په ټولې زمکي کښ دلته
١١ هلته زغلي ١١ نو ما په هغه ځواب کښ وويل چه دغه دواړه دَ زيتون
١٢ دَ ونې چه دَ شمعدان په ښي په کيڼ طرف دِي څه دِي ؟ ١٢ او ما بل
وار خبري وکړي ورته و مِ ويل چه دغه دواړه ښاخونه دَ زيتون چه
دَ سرو زرو دَ دوو شپيليو سره پيوسته دِي چه دَدوي له ځانونو
١٣ نه زرزرين (تيل) تشوي ١٣ هغه ما ته ځواب راکړ و ئي ويل چه ته
١٤ نه پوهيږې څه ؟ چه دا څه دِي ١٤ ما وويل نه اي څما خاوندَ هغه
راته وويل چه دا هغه دواړه مسحَ کړي زامن دِي چه دَ ټولي زمکي
دَ خداوند په حضور ولاړ اوسي *

# پنځم باب

١ ١ نو زه وګرزيدم او خپلي سترګي مِ پورته کړي او نظر مِ وکړ او ګوره
٢ يوه الوتونکي ملاتقه ٢ هغه راته ووِ چه ته څه ګوري ما ځواب ورکړ
چه الوتونکي ملاتقه وينم چه اوږدوالي ئي شل هاتي او پلنوالي لس
٣ هاتي ٣ بيا هغه راته وُوِ چه دا هغه لعنت دَي چه په ټول روي زمين
نازل کيږي او هر يو چه غلا کوي په دي لوري به دَ هغه په دود رد کړي
شي او هر يو چه بيځايَ قسم خوري په هغه لوري به دَ هغه په
٤ دود رد کړي شي ٤ زه به هغه روان کړم خداوند دَ لښکرو فرمائي
او هغه به دَ غله کره او دَ هغه کره چه څما په نوم دروغ قسم کوي
ننوزي او دَ هغه دَ کور په منځ کښ به پاتي شي او هغه به دَ هغه

له لړکيو او دَ هغه له کاڼيو سره برباد کړي
۵ او هغه فرشته چه له ما سره ئي خبري کولي راووتله او ٥
ما ته ئي وويل چه اوس ته خپلي سترګي پورته کړه او ګوره دا چه راوزي
څه دي ۶ ما وويل چه دا څه دي؟ هغه وويل دا چه راوزي يوه ايفه ٦
ده او هغه وويل چه په ټوله زمکه کښ هم دغه دَ هغو سترګي دي
۷ وګوره يو ګرد برغولي دَ سکي پورته کړي او يوه ښځه ده چه دَ ايفي ٧
په منځ کښ ناسته ده ۸ او هغي وويل چه دا شرارت دَی او هغي دَغه ٨
دَ ايفي په منځ کښ وپرزوله او دَ هغي سکي برغولي ئي دَ هغي په خولي
واچاوه ۹ بيا مِ خپلي سترګي پورته کړي او نظر مِ وکړ او ګوريِ دوه ٩
ښځي راووتي او باد دَ هغو په وزرو کښ وُو او دَ هغو وزر لکه وزر
دَ ډينګ او هغو ايفه دَ آسمان او دَ زمکي په مينځ پورته کړه ۱۰ نو ١٠
ما هغي فرښتي ته چه له ما سره ئي خبري کولي وويل چه دغه ايفه
چرته وړي؟ ۱۱ هغي راته وويل دي دَپارَ ئي وړي چه دَ سنعار په زمکه ١١
کښ دَ هغي يو کور جوړ کړي چه هغه ودراوه شي او پخپل بنياد باندِ کيښود شي

## شپږم باب

۱ نو زه وګرزيدم او خپلي سترګي مِ پورته کړي او نظر مِ وکړ نو ګوره ١
چه دَ هغو دوارو غرونو له منځ نه څلور ګاډيِ راووتي او هغه غرونه
دَ زيړو غرونه وُو ۲ په اوله ګاډيِ کښ سرنګ آسونه وُو ۳ او په دويمه ٢ ٣
ګاډيِ کښ مشکي آسونه وُو او په دريمه ګاډيِ کښ نقري آسونه او
په څلورمه ګاډئ کښ ابلق آسونه وُو ۴ نو ما هغي فرښتي ته چه له ما ٤
سره ئي خبري کولي وويل چه اي څما خاوندَ دا څه دَي ۵ او فرښتي ځواب ٥
راکړ و ئي ويل چه دا دَ آسمان څلور ارواحونه دِي چه دَ ټولي زمکي
دَ خاوند دَ حضور له ولاړيدلو راووځي ۶ او مشکي آسونه چه په ٦
هغه کښ دِي دَ قطب و ملک ته ووځي او سپين ورپسي ووځي ۷ او ٧
ابلق دَ سُهيل و ملک ته ووځي سرنګ ووتل نيت ئي وکړ چه په ټولي

زمکي وګرزي او هغي ووِ چه ځيِ او په زمکي کښ لور په لوري وګرزيِ
۸ او هغوي په زمکي کښ وګرزيدل ۸ نو هغي ما ته را ناري کړي او و ئي ويل
چه هغه ګوره چه دَ قطب و ملک ته وتلي دِي دوي څما زړه دَ
قطب په مُلک کښ آرام کړي دي
۹ ۱۰ ۹ بيا دَ خداوند کلام ما ته راورسيده او و ئي ويل ۱۰ چه
ته له بنديانو سره يعني له خلدِي او له طوبياه او له يدعياه سره
چه له بابل نه راغلي دِي هلته سپين او سره زر واخله او ته
۱۱ هغه ورځ لاړ شه صفنياه دَ زوي يوسياه کره ورننه ووزه ۱۱ او تاجونه
جوړ کړه او دَ يهوشوع زوي دَ يهوصدق سردار کاهن په سر ئي کيږدُ
۱۲ ۱۲ او داسي ورته ووايه چه خداوند دَ لښکرو داسي فرمائي چه ګوره
هغه سړي چه نوم ئي شاخ دَي او هغه به دَ خپل ځاي له لاندِ نه
۱۳ زرغون شِي ۱۳ او دَ خداوند هيکل به جوړ کړي هم هغه به دَ خداوند
هيکل جوړ کړي او هم هغه به جمال واخلي او پخپل تخت به کښيني
حکومت به کوِي او هغه به پخپل تخت ناست کاهن به هم وِي او دَ
۱۴ سلامتي مصلحت به په دواړو کښ وِي ۱۴ او هغه تاجونه به حيلم
او طوبياه او يدعياه او حين زوي دَ صفنياه لره وِي چه دَ
۱۵ خداوند په هيکل کښ يوه يادګارِي وِي ۱۵ او هغوي چه لري لري
دِي را به شِي او دَ خداوند په هيکل کښ به بنا وکړي او تاسي به پوه شئِ
چه خداوند دَ لښکرو زه تاسي ته در استولي يم او که تاسو دَ خداوند
خپل الله آواز په آوريدنه سره واوريِ نو داسي به وشِي ✣

## اوم باب

۱ ۱ دَ دارا بادشاه په څلورم کال کښ داسي وشول چه دَ خداوند کلام دَ
نهمي مياشتي په څلورم (تاريخ) يعني په کسليو (مياشتي) کښ ذکرياه ته
۲ ورسيده ۲ دا هغه وقت وشه چه بيتِ ايل شراخر او رجم ملک او دَ هغو
۳ خلق واستول چه دَ خداوند په حضور دعا وغواړي ۳ او چه دَ لښکرو

دَ خداوند دَ کور کاهنانو ته او نبیانو ته ووایي چه زه به په پنځمي
میاشتي کښې وژاړم څه ؟ او ځان جدا کړم لکه چه ما له څو کالونو کړي دي
۴ ۵ ۴ نو خداوند دَ لښکرو کلام ما ته راورسیده ۵ او وئي ویل چه ته دَ
زمکي ولټولو خلقو ته او کاهنانو ته ووایه چه هرکله چه تاسي په پنځمي
او په اوومي میاشتي کښې تر هغو اویاؤ کالو پوري روژه ولرله او ویر مو
۶ وکړ نو کله موځما دَپارَ هم ولرله هو هم ځما دَپارَ څه؟ ۶ او هرکله چه
تاسي وخوړل او وڅښل نو ګنړه دَ خپل ځان دَپارَ مو نه وخوړل او نه
۷ وڅښل څه؟ ۷ ګنړه دا هغه خبري نه دِي څه ؟ چه خداوند دَ وړاندنیو
نبیانو په معرفت په نارو نارو وکړي هغه وقت چه اورشلیم آباد او
آسوده حالَ وُه او دَده په ګِرداګِرد ښهرونو هم داسي وُو هغه وقت چه
خلقو دَ سُهیل په زمکه کښې او په میدان کښې استوګنه کوله
۸ ۹ ۸ بیا دَ خداوند کلام ذکرّیاه ته ورسیده ۹ او وئي ویل چه
خداوند دَ لښکرو داسي وایي چه تاسي رښتِني عدالت کويِ او هرڅوک
۱۰ په خپل خپل ورور کرم او رحم کويِ ۱۰ او په کونډو او په یتیمانو او په
مسافرانو او په مسکینانو ظلم مه کويِ او هیڅوک دِ له تاسي نه پخپل زړه
۱۱ کښې دَخپل ورور دَ بدِي فکر نه کويِ ۱۱ لیکن دوي له فکر کولو انکار
وکړ بلکه دَ بې‌فرماني اوږه ئي وکړه او خپل غوږونه ئي بند کړل تا چه
۱۲ نه واورِي ۱۲ بلکه خپل زړونه ئي الماس کړل تا چه تورَیت او دَ هغه
کلامونه چه خداوند دَ لښکرو دَ وړاندنیو نبیانو په لاس له خپل روح
نه استولِي وُو نه واورِي دي دَپارَ دَ خداوند دَ لښکرو له طرف نه لوي
۱۳ قهر نازل شه ۱۳ او داسي وشول لکه چه هغه ناري وکړي او دوي اوریدونکي
نه شول هم هسي دوي به ناري وکړي او زه به نه واورم خداوند دَ لښکرو
۱۴ فرمایي ۱۴ بلکه زه به هغوي په هغو ټولو قومونو کښې چه دوي ورنه
ناخبر دِي په ګرد باد تار په تار کړم هم هسي دَدوي په وروستو زمکه وران
شوه داسي چه هیڅ یو په هغې کښې تله راتله نه کول ځکه چه هغوي

هغه زه خوښونکي زمکه ويرانه کړي دَه ❖

## اتم باب

۱ آ بيا دَ خداوند کلام وماته راورسيده ۲ او وئي ويل چه خداوند دَ
لښکرو داسي فرمايي چه دَ صيحون دَپارَ ډير ډير غيرتناک شولم بلکه له لوي
۳ غيرت سره زه دَ هغه دَپارَ غيرتناک شوم ۳ خداوند داسي فرمايي چه
زه په صيحون کښ بيا راغلم او دَ اورشليم په منځ کښ به استوګنه وکړم
او دَ اورشليم نوم به دَ امان ښهر او دَ خداوند دَ لښکرو غر به
۴ مقدّس غر بللي شي ۴ خداوند دَ لښکرو داسي فرمايي چه بيا به زاړه سړي
او زړي ښځي دَ اورشليم په کوڅو کښ ناستي وي او دَ هر يوه سړي
۵ په لاس کښ به دَ هغه دَ ډيرو ورځو په سبب په امسا وي ۵ او دَ
ښهر کوڅي به له هلکانو او له جنکيو ډکي وي چه په کوڅو کښ به لوبي
۶ کوي ۶ او خداوند دَ لښکرو داسي فرمايي چه اګر که دغه په هغو ورځو
دَدي قوم دَ باقيه په سترګو کښ عجيبه وه نو هم خما په سترګو کښ
۷ عجيبه وي څه ؟ خداوند دَ لښکرو فرمايي ۷ خداوند دَ لښکرو داسي
فرمايي چه ګوره زه به خپل خلق دَ نمرخاته له ملک نه او دَ پريواته له
۸ ملک نه راخلاص کړم ۸ او زه به ئي راولم او دوي به دَ اورشليم په
منځ کښ استوګنه کوي او دوي به خما اُمت وي او زه به په امان او صداقت
۹ سره دَ دوي الله شم ۹ خداوند دَ لښکرو داسي فرمايي چه اي (خلقو) خپل
لاسونه مضبوط کانړئ تاسي چه په دي ورځو کښ دا خبري دَ نبيانو له
خلو اوريئ چه په هغه ورځ وي چه خداوند دَ لښکرو دَ هيکل بنياد
۱۰ اچاوه کيده تا چه هيکل بنا کړي شي ۱۰ ځکه چه له هغو ورځو وړاندِ
نه دَ انسان دَپارَ مزدوري وَه او نه دَ څناورو مزدوري وَه او نه
دَ دښمن په سبب دَ وتونکيو او دَ ننه‌وتونکيو سلامتي وَه ځکه چه
۱۱ ما ټول آدميان هر يو په خپل ګاونډي وليږه ۱۱ ليکن اوس به زه
دَدي قوم دَ باقيه دَپارَ نه شم لکه چه په وړاندنيو ورځو کښ وم

خداوند دَ لښکرو فرمائي ۱۲ بلکه دَ سلامتي فصل به وِي ځکه چه تاک ۱۲
به خپلي ميوي راوړِي او زمکه به خپل حاصل ورکړِي او آسمان به
خپل شبنم ورکړِي او زه به دَ دي قوم باقيه دَ دي ټولو وارثان
کړم ۱۳ او داسي به وشِي اي دَ يهوداه کوره او اي دَ اسرائيل کوره لکه ۱۳
چه تاسي دَ غير قومونو په منځ يو لعنت وئِ هم هسي به مو خلاص
کړم او تاسي به يو برکت شئِ مه ډاريږئِ بلکه ستاسي لاسونه دِ
مضبوط وِي ۱۴ ځکه چه خداوند دَ لښکرو داسي فرمائي لکه چه ما ۱۴
نيّت کړي وه چه له تاسي سره بد وکړم هغه وقت چه ستاسي پلرونو
او نيکونو زه په غصّه کړم خداوند دَ لښکرو فرمائي او ما پښيماني
ونه کړه ۱۵ هم هسي زه په دي ورځو کښ وګرزيدم فکر مِ وکړ چه ۱۵
دَ اورشليم او دَ يهوداه له ټبره سره به نيکي وکړم پس تاسي مه
ډاريږئِ

۱۶ دا هغه کلمونه دِي چه تاسي پرِ عمل وکړئِ چه ۱۶
هر يو سړي له خپل ګاونډِي سره رښتيا وائِي او تاسي په خپلو
دروازو کښ رښتني او دَ صلحي انصاف سره عدالت کانړئِ ۱۷ او له ۱۷
تاسي دِ هيڅوک پخپل زړه کښ دَ خپل ورور دَ بدِي خيال نه کوِي
او په دروغ قسم مينه مه کوئِ ځکه چه زه له دي ټولو څيزونو نفرت
کوم خداوند فرمائي

۱۸ بيا دَ خداوند دَ لښکرو کلام ما ته را ورسيده ۱۹ او ده ۱۸ ۱۹
وويل چه خداوند دَ لښکرو داسي فرمائي چه دَ څلورمي مياشتي روژه
او دَ پنځمي روژه او دَ اوومي روژه او دَ لسمي روژه دَ يهوداه دَ کور
دَپارَ به خوښي او خوشحالي او دَ خوښي کولو عيدونه وِي دي دَپارَ تاسي
رښتني او سلامتي مينه کوئِ ۲۰ خداوند دَ لښکرو داسي فرمائي چه ۲۰
په آينده کښ به داسي وشِي چه قومونه او دَ ډيرو ښهرونو اوسيدونکي
به راشِي او دَ يوه ښهر اوسيدونکي به وبل (ښهر) ته ورشِي و به

وايي چه ځئ چه څو تا چه موږ دَ خداوند مهرباني وغواړو او خداوند
٢٢ دَ لښکرو و لټوو هوزه به هم لاړ شم ٢٢ او ډېر خلق او زوراور
قومونه به دَ خداوند دَ لښکرو و لټولو ته او دَ خداوند دَ مهرباني
٢٣ غوښتلو لره به اورشليم کښې راشي ٢٣ خداوند دَ لښکرو داسي فرمايي
چه په هغو ورځو کښې (به داسي وشي) چه دَ قومونو لس سړي له
ټولو ژبو دَ قومونو نه لاس به ونسي هو دَ يوه يهودي سړي لمن به
ونيسي او و به وايي چه موږ به له تا سره لاړ شو ځکه چه موږ
اوريدلي دي چه الله له تاسو سره دَي ❊

## نهم باب

١ ١ دَ خداوند الهامي کلام چه دَ حدرک په زمکي کښې دَي او دمشق دَ
هغه آرامګاه وِي چه دَ بني آدم او دَ اسرائيل دَ ټولو فرقو سترګي به
٢ دَ خداوند په لوري وِي ٢ او دَ حمات هم چه له هغه سره پيوسته
٣ دَي او صور او صيدا هم هرڅو که هغه لوي عقلمند دِي ٣ هو اګر
که صور دَ ځان دَپارَ يوه مضبوطه قلا جوړه کړه او دَ دوړو په دود
ئې دَ سپينو زرو توده جوړه کړه او خالص زر ئې دَ کوڅو دَ چيکړ په
٤ شان ٤ ګوريِ خاوند به ئې خارج کړي او دَي به دَ هغه قوّت په درياب
٥ کښې ووهي او په اور به وخوړلي شي ٥ اشقلون به ووينې او و به
داريږي او غزه دِ هم ووينې او ډېر دردمند به شي عقرون هم چه دَ
هغه انتظاري به شرمنده شي او له غزه به بادشاه نابود شي او
٦ اسقلون به آباد نه شي ٦ او يو حرامزاده به په اشدود کښې و اوسي
٧ او زه به دَ فلسطيانو کبرجني پريکړم ٧ او زه به دَ هغه وينې دَ هغه
له خولې نه او دَ هغه نفرتناک څيزونه دَ هغه له غاښونه راوباسم
او هغه به يوه باقيه وِي دَ موږ دَ الله دَپارَ او هغه به دَ هغه
سردار په دود وِي چه په يهوداه کښې دَي او په عقرون کښې به دَ
٨ يبوسي په دود وِي ٨ او زه به دَ خپل کور شا او خوا په فوځ سره

منسوط کړم له هغه نه چه تیریږي او له هغه نه چه راګرزي له
دي وروستو به هیڅ ظالم دَ هغو په منځ کښ تیر نه شي ځکه
چه اوس مِ پخپلو سترګو لیدلي دَي
۹ ۹ اي دَ صیحون لوري ته بيحده خوښي کوه اي دَ اورشلیم لوري
ته ناري وکړه ځکه ګوره ستا بادشاه تا ته راځي هغه صادق دَي او
نجات ورسره دَي هغه حلیم دَي او په خره باندِ په ځوي دَ خري
۱۰ هو په کوټي باندِ سوار دَي ۱۰ او زه به دَ افرائیم ګاډيِ او دَ
اورشلیم آسونه پرېکړم او جنګي لیندي به پرېکړي شي او هغه به
قومونو ته دَ صلحي زيري ورکړي او دَ هغه بادشاهت به له سمندره
۱۱ پوري او له دریاب نه دَ زمکي تر انتها پوري وِي ۱۱ او ته چه يي له
تا سره دَ وینو دَ وعدي په سبب ما ستا بندیان له هغه کوهي نه
۱۲ چه هلته کښ اوبه نشته دَ باندِ استولي دِي ۱۲ تاسي و هغي مضبوطي
قلا ته بېرته راشئ اي امیدوارو بندیانو زه نن ورځ وایم چه زه به
۱۳ تاسي ته دوه ګون درکړم ۱۳ ځکه چه ما یهوداه دَ خپل ځان دَپاره
ټیټ کړ او لینده مِ له افرائیم نه ډکه کړه او زه به اي صیحون ستا
زامن ولمسوم ستا په زامنو اي یونانه او زه به تا دَ پهلوان دَ توري
۱۴ په دود جوړ کړم ۱۴ او خداوند به دَ هغو دپاسه ښکاره شي او دَ
هغه غشي به دَ برېښنا په شان ووزي هو خداوند الله به شپېلۍ
۱۵ پو کړي او دَ سُهیل په بربوکیو کښ به ووزي ۱۵ او خداوند دَ لښکرو
به ورځرګند شي او دوي به ونغري او دَ مچوغنو په کاڼيو به پښي
ږدي او هغوي به وڅښي او شور به کوِي لکه له شرابو نه او دَ
۱۶ کټوريو په دود او دَ مذبح دَ کونجونو په څیر به ډک وِي ۱۶ او خداوند
دَ هغو الله به خپل اُمّت دَ رمي په شان په هغي ورځي خلاص
کړي ځکه چه دَ ګوهر دَ تاج په طور به شي چه دَ هغه په زمکي
۱۷ باندِ بلندِي نیسِي ۱۷ ځکه چه دده احسان څومره عظیم دَي او دَده

حسن ښرنګ ښه دَي غلي به ځوانان تازه کړِي او نوي شراب پېغلي ❊

## لسم باب

۱ آ څاسي له خداوندَ باران وغواړئِ دَ ورستنِي باران په وقت کښ
ځکه چه خداوند بريښناوي جوړوِي او دَ شيبو باران به ورکړِي
۲ سرِي ته په پټِي کښ وابښه ۲ ځکه چه ترافِيم دَ بطلان خبري
ويلِي دِي او غيب ليدونکيو ټکي ليدلي دَه او دَ دروغو خوبونو بيان
ئِي کړِي دَي هغوي په باطل سره تسلّي ورکوِي دي دَپارَ دوي دَ
رمي په دود وترهيدل دوي عذاب ومونده ځکه چه دَدوي شپوڼ
۳ نه وه ۳ زما غضب په شپنو زبات شوي دَي او زه به سردارانو
ته سزا ورکړم نو هم خداوند دَ لښکرو په خپلي رمي يعني دَ اهل
يهوداه بازخواست کړي دَي او هغوي به په جنګ کښ خپل ښائسته
۴ آس غوندِ جوړ کړي ۴ دَ هغه له لوري نه دَ کونج کاڼي له هغه
نه مېخ له هغه نه جنګي لينده له هغه نه به هر يو حاکم ووزي
۵ ۵ او دوي به دَ پهلوانانو په دود په جنګ کښ دښمنان دَ کوڅو دَ خټو
په شان ودربِي او دوي به وجنګيږِي ځکه چه خداوند ور سره دَي
۶ او هغوي چه په آسونو سواره دِي شرمنده به شي ۶ ځکه چه زه
به دَ يهوداه وکوړِي ته قوّت ورکړم او دَ يوسف و ټبر ته به خلاصي
وبخښم او زه به هغوي بيا کښېنوم ځکه چه ما په دوي باندِ رحم
کړي دَي او هغوي به داسي وِي چه ګويا کښ ما دوي هيڅري ترک
کړي نه وُو ځکه چه زه خداوند دَدوي الله يم او دَدوي به
۷ واورم ۷ او افرائيم به پهلوان غوندِ وِي او دَ هغوي زړه لکه
له شرابو هم هسي به خوشحال وِي بلکه دَ هغو اولاد به هم
وويني او خوښي به وکړي دَدوي زړه به په خداوند کښ خوشحال
۸ وِي ۸ زه به دَدوي دَپارَ شپيلکي ووهم او دوي به سره راټول کړم
ځکه چه ما دوي ته فديه ورکړي دَه او دوي به ډير شي لکه چه

دېر شوي وُو ۹ هر څو چه ما دوي دَ قومونو په منځ کښې وکرل نو ۹
هم دوي به ما په هغو لرې لرې ملکونو کښې ياد کړي او دوي به
له خپل عيال سره ژوندي وي او پسته به راشي ۱۰ زه به دوي دَ ۱۰
مصر له زمکې بيرته راولم او دوي به له آسور نه راټول کړم او
دَ جلعاد او دَ لبنان په زمکه کښې به ئې بيرته راولم تر دې حده چه
دَ دوي دَپاره به ځاي سنده نه شي ۱۱ او دي به دَ تنګي په درياب کښې ۱۱
پوري خوا ته لاړ شي او دَي به دَ درياب چاپې ووهي او ټولي ژورې
دَ نيل به وچې شي او دَ آسور غرور به لاندې کړې شي او دَ مصر
امسا به لاړه شي ۱۲ او زه به دوي له په خداوند کښې توت ورکړم او ۱۲
دوي به خپل ژوند دَده په نوم وګرزوي خداوند فرمايي ٭

## يولسم باب

۱ اي لبنانَ ته خپلې دروازې وازې کړه تا چه اور ستا نښتر وخوري ۱
۲ اي دَ سرو ونو وير وکړي ځکه چه نښتر پريوتل ځکه چه شاندار ۲
لوټ شوي دي اي دَ بسن دَ بلوط ونو وير کوئ ځکه چه ګڼه بنړ
پريوتلي دي
۳ دَ شپنو دَ وير آواز دې دي دَپاره چه دَ هغو دبدبه لوټ ۳
شوله دَ ځوانانو ببرو زمريو دَ غړمبا آواز دې ځکه چه دَ اردن کبرجنې
لوټ کړې شوه ۴ خداوند خما الله داسې فرمايي چه ميږې وڅروي چه ۴
دَ حلالو دَپاره دي ۵ چه مالکان ئې ذبحه کوي او ځانونه ګنهګار نه ګڼي ۵
او له هغوي نه هر يو چه هغوي خرڅوي وايي چه خداوند دِ مبارک وي چه
زه مالدار شوم او دَ هغو خپل شپانه په هغو زړه سوي نه کوي -
۶ ځکه چه زه به بيا دَ ملک په اوسيدونکيو زړه سوي و نه کړم خداوند ۶
فرمايي ليکن ګوره زه به دَ هغو سړيو هر يو تن دَ هغو دَ همسايه او دَ
هغو دَ بادشاه په لاس کښې کړم او هغوي به زمکه تباه کړي او زه به
دوي دَ هغو له لاسونو خلاص نه کړم ۷ پس ما هغه ميږې چه دَ حلالو ۷

دَپارَ وي هو دَ رمي مسکينان مِ وڅرول او ما دوه لښتنډيِ واخستلي
٨ يوي ته مِ نعَم وويل او بلي ته حبلَ او رمه مِ وڅروله ٨ او ما دري
شپانه په يوي مياشتي کښ هلاک کړل او ځما ځان له هغوي تنگ شه
٩ او دَ هغوي ځانونو رانه نفرت وکړ ٩ نو ما وويل چه زه به بيا تاسي
ونه څروم هغه چه مري مره دِ شي اوچه په پريکيدلو وِي پريکړ دِ شي
او هغه چه باقي به وي نو له هغوي دِ هر يو دَ بل غوښي خوري-
١٠ ١٠ پس ما خپله نعَم لښتنډيِ واخسته او ماته مِ کړه دي دَپارَ چه
هغه ځما خپله وعده چه ما له ټولو قومونو سره ترلي وه ماته کړم
١١ ١١ نو په هغي ورځي کښ ماته شوه او دَ رمي مسکينان چه ځما لار ئي
١٢ کتله وپوهيدل چه دا دَ خداوند کلام دَي ١٢ او ما هغوي ته وويل
چه که ستاسي په سترگو کښ ښه راځي نو ځما مزدوري ماته
راکړيِ او که نه نو پري ئي ږديِ او هغوي ځما دَ مزدوريِ دَپارَ ديرش
١٣ روپيِ په تول راکړي ١٣ اوخداوند ماته وويل چه هغه کلال ته
ئي وغورزوه هغه ښه قيمت چه هغوي ځما مقرّر کړي وُه او ما
هغه ديرش روپيِ واخستي او دَ خداوند په کور کښ مِ کلال ته
١٤ وغورزولي ١٤ بيا ما خپله دويمه لښتنډيِ حبلَه پريکړه تاچه هغه
وروروَلوي چه په اسرائيل او په يهوداه کښ ده ماته کړم
١٥ ١٥ او خداوند ماته وويل چه ته بيا دَ نادان شپانه وسله
١٦ خپل ځان لره واخله ١٦ ځکه گوره زه به په ملک کښ يو شپون مقرّر
کړم چه دَ هغو چه په هلاکيدلو دِي خبر به ئي ونه خلي او هغو
له چه ورک شوِي دِي و به ئي نه لټوي او هغوي چه زخمي وِي جوړ
به ئي نه کړي او هغه چه ولاړ وِي نه به ئي وڅروِي ليکن دَ
١٧ ځربو غوښي به وخوري او دَ هغو سُمونه به پريکړي ١٦ هَي هَي په
١٨ هغه ناکس شپانه چه رمه پريږدِي ١٧ توره به دَ هغه په
وزر باندِ او دَ هغه په ښي سترگي باندِ وِي دَ هغه وزر بالکلّ

وچ او دَ هغه ښي سترګه به ضعيفه شي ۞

# دولسم باب

١ آ دَ خداوند دَ خبري وحيه چه په اسرائيل باندِ دَه هغه خداوند
فرمايي چه آسمانونه غوروِي او دَ زمکي بنياد آچوِي او دَ انسان
٢ دننه ئي روح پيدا کوِي ۲ ګوريِ زه به داسي وکړم چه اورشليم به
دَ هغه لورِي دَ ټولو قومونو دَپارَ رپيدلي پياله شي او دَ يهوداه به
هم (داحال) وِي په ګير کيدلو دَ اورشليم
٣ ۳ او په هغه ورځ کښ به داسي وشي چه زه اورشليم لره
دَ ټولو قومونو دَپارَ يو دروند کاڼي کړم او ټول چه هغه پورته کوِي
ټکړي ټکړي به شِي او دَ زمکي ټول قومونه دِدغه په مقابل جمع
٤ شِي ۴ هغه ورځ خداوند فرمايي زه به هر يو آس په حيراني ووهم
او دَ هغه سوار په ليونتوب سره ليکن خپلي سترګي به دَ يهوداه په
٥ ټبر پرانستلي لرم او دَ قومونو ټول آسونه به ووهم په ړوندوالي ۵ نو
به دَ يهوداه دَ قوم حاکمان پخپل زړه کښ ووايي چه دَ اورشليم اوسيدونکي
٦ دَ هغو دَ الله خداوند دَ لښکرو په سبب دَ مونږ قوت دِي ۶ زه به
هغه ورځ دَ يهوداه حاکمان دَ هغه نغري په دود چه دَ لرګيو په منځ
کښ وِي او دَ هغه بل مشعل په شان چه دَ ختِي په منځ کښ وِي
کړم او دغه به په ښي لورِي او په کيڼ لورِي ټول قومونه ونغري او
اورشليم به بيا پخپل مقام باندِ اوسيدونکي شِي هو په اورشليم کښ
٧ ۷ او خداوند به دَ يهوداه خيمو ته ورښي خلاصون ورکړي تاچه دَ
داؤد ټبر او دَ اورشليم اوسيدونکي په يهوداه خپل فخر لوئي ونه کړي
٨ ۸ هغه ورځ به خداوند دَ اورشليم دَ اوسيدونکيو مددګاري وکړي
او هغه چه په دغي ورځي له هغوي په ړتنه وي دَ داؤد په دود
به وِي او دَ داؤد ټبر به دَ الله غوندي وِي بلکه دَ خداوند دَ
فرښتي په شان چه دَ هغو په مخ کښ وِي

۹ ؏ او هغه ورځ به داسي وشي چه زه به هغو ټولو قومونو
ته چه په اورشلیم باندِ ختلو ته ورځي سراغ وکړم چه ئې هلاک کړم
۱۰ ؁ او زه به دَ داؤد په ټبر او دَ اورشلیم په اوسیدونکیو دَ فضل
دَ زارِي روح و اورم او دوي به په ما باندِ چه خیرلي ئې یم نظر
وکړي او دوي به په هغه باندِ وِیر وکړي لکه چه څوک دَ خپل یوه
څري زوي دَپارَ وِیر کوي او هغوي به دده دَپارَ په تلخۍ کښ وِي لکه
۱۱ چه څوک دَ خپل مشیرِي زوي دَپارَ په تلخِي کښ پریوزِي ؑ او هغه
ورځ به په اورشلیم کښ لوي وِیر وِي دَ هددرمون دَ وِیر په شان
۱۲ دَ مجدّون په کندي کښ ؒ او ټول زمکه به وِیر کوِي: هره کورمه
کورمه: دَ داؤد کورمه بیله او دَ هغو ارتیني بیلي دَ ناتن کورمه
بیله او دَ هغو ارتیني بیلي دَ لاوِي ټبر بیل او دَ هغو ارتیني
بیلي دَ سمعِي کورمه بیله او دَ هغه ارتیني بیلي ټولي ټبري چه
باقي پاتي شِي یوه یوه کورمه بیله بیله او دَ هغو ارتیني بیلي بیلي ؞

# دیارلسم باب

۱ آ په هغه ورځ به دَ خطا او دَ ناپاکِي دَپارَ دَ داؤد دَ کوري دَپارَ
او دَ اورشلیم دَ اوسیدونکیو دَپارَ یو چینه وازه شِي
۲ ؎ او هغه ورځ به داسي وشِي خداوند دَ لښکرو فرمائي
چه زه به دَ بتانو نومونه له زمکي نه پریکړم او بیا به هیڅري
یاد نه کړي شِي او زه به نبیان او ګنده روح له زمکي نه وباسم
۳ ؏ او داسي به وشِي چه څوک نبوّت کوِي نو دَ هغه مور پلار چه دغه
ور نه پیدا شه ور نه و به وائِي چه ته به ژوندي پاتي نه شي ځکه
چه نه دَ خداوند په نوم دروغ وائِي او دَ هغه مور او پلار چه
دَي ور نه پیدا دَي هغه وقت چه دَي پیشینګوئِي کوِي سورَي به
۴ ئې کړِي ؏ او هغه ورځ به داسي وشِي چه له نبیانو نه به هر یو

هغه وقت چه دَي نبوّت کوي له خپلي رؤيا نه به شرمنده شي
او هغه به هيڅري دَ وړيو جامي نه آغوندي دَپارَ دَ فريب -
۵ ۵ بلکه هغه به وايي چه زه نبي نه يم زه سړي دَ زمکي نوکر
۶ يم ځکه چه څما له ځواني نه زه غلام کړي شوي يم ۶ او يو به
ورته ووايي چه ستا په لاسونو دا څه زخمونه دي نو ځواب
به ورکړي چه دا هغه زخمونه دي چه په ما باندي دَ خپلو
۷ دوستانو په کور کښ وشول ۷ اي توري نه څما دَ شپانه په
خلاف ويښه شه او دَ هغه سړي په خلاف چه څما هم تا دَي
خداوند دَ لښکرو فرمايي هغه شپون ووهه او رمه تار په تار
۸ شي او زه به خپل لاس په وړوکيو وګروم ۸ او داسي به وشي
خداوند فرمايي چه په ټولي زمکي کښ ور نه به دوه حصّي
پريکړي شي او و به مري ليکن دريمه حصه به په هغو کښ باقي
۹ پاتي شي ۹ او زه به دريمه حصه دَ اور په منځ کښ بوزم او زه
به هغوي داسي صاف کړم لکه چه سپين زر صافيږي او داسي
۱۰ به يې وآزمايم لکه چه سره زر آزمايل کيږي ۱۰ هغه به څما
نوم بولي او زه به يې واورم زه به ووايم چه دا څما اُمّت دَي
او هغه به ووايي چه خداوند څما الله دَي ◆

## څورلسم باب

۱ آګوره دَ خداوند ورځ راځي او ستا دَ لوټ به ستا په منځ کښ
۲ وويشلي شي ۲ او زه به ټول قومونه راټول کړم چه په اورشليم
باندي وجنګيږي او ښهر به واخستلي شي او کورونه به لوټ
کړي شي او ښځي به بي‌عزّته شي او نيم ښهر به په بند لاړ شي
۳ ليکن هغوي چه باقي پاتي شي له ښهر نه به پريکړي نه شي ۳ بيا
به خداوند راووځي او له هغو قومونو سره لکه چه په خوا دَ
جنګ په ورځ جنګيدلي وَه جنګ به وکړي

۴ ۴ او هغه ورځ به دده پښې د زیتون په غره چه د
اورشلیم د وړاندِ و مشرق خوا ته دي ودرېږي او د زیتون غر
به د مغرب او د مشرق په منځ داسي وچوي چه په هغه کښ
به لویه خوړه جوړه شي څکه چه نیم غر به د قطب په لوري
۵ لاړ شي او نیم د هغه به د سهیل په لوري ۵ او تاسي به
څما د غرونو وخوړ ته وتښتئ څکه چه د غرونو خوړي به له اځل
سره کړي شي هو لکه چه تاسي د عزیاه بادشاه د یهودیانو په ورځو
کښ له زلزلي نه تښتیدلئ هم هسي به ولښتئ او یهوه څما الله به
۶ راشي او ټول پاکان ستا سره ۶ او هغه ورځ به داسي وشي چه رڼا
به نه وي او ځلیدونکي به تاریک شي لیکن یوه ورځ به وي چه
خداوند ته معلومه ده نه ورځ او نه شپه بلکه داسي به وي چه
۸ د نماښام په وقت به رڼا وي ۸ او هغه ورځ به داسي وشي چه
ژوندانه اوبه به له اورشلیم نه ووزي د هغو نیمي به د مشرقي سمندر
په لوري او د هغو نیمي به د مغربي سمندر په طرف په ګرمي کښ او
۹ په یخني کښ به هم داسي وي ۹ او خداوند به د ټولي دنیا بادشاه
وي هغه ورځ به یو خداوند وي او دده نوم به یو وي او ټوله
زمکه به بدله شي د هغه عرباه په دود به شي چه له جبعه نه
تر رِمّون پوري د اورشلیم د سهیل په لوري دي هغه به پورته
کړي شي او د بنیمین له دروازي نه د ورنبئ دروازي تر ځاي
پوري او د کنج تر دروازي پوري او د حننیل له برج نه د بادشاه
۱۰ تر انګوري تالابونو پوري به په خپل ځاي باندِ آباد کړي شي ۱۱ او
خلق به په هغه کښ استوګنه کوي او بیا به لعنت هرګز نه وي
بلکه اورشلیم به په توکّل سره اوسي
۱۲ ۱۲ او دا هغه وبا وي چه په دغي به خداوند هغه ټول قومونه
چه جنګیدلو نه په اورشلیم راختلي دي ووهي د هغو غوښي به

هغه وقت چه دوي پخپلو پښو ولاړ وي ستخا شي او دَ هغو سترګي
به دَ هغو په غارونو کښ ستخا شي او دَ هغو ژبې به دَ هغو په خولو
کښ ستخا شي ١٣ او هغه ورځ به داسي وشي چه دَ خداوند له لوري ١٣
به دَ هغو په منځ کښ ډېر هيبت پريوزي او هغوي به دَ خپل ملګري
لاس ونيسي او دَ هغه لاس به دَ خپل ملګري دَ لاس په خلاف پورته
کړي شي ١٤ او يهوداه به هم په اورشليم کښ وجنګيږي او دَ ټولو غير ١٤
قومونو مال چه شا او خوا دي که سره که سپين زر که جامي دي په
ډېر کثرت سره به جمع کړي شي ١٥ او اسونه او کچري او اوښان او ١٥
خرونه او ټول څناوران چه په هغو لښکرګاهو کښ وي په هغي شان
مرګو لکه چه دا ده سره به شي ١٦ او داسي به وشي چه هر يو له هغو ټولو ١٦
قومونو نه چه په اورشليم را وختيږي باقي شي نو کال په کال دَ بادشاه
دَ لښکرو ته سجده کولو او عيدِ جونګړو منلو ته به ورختيږي ١٧ او ١٧
داسي به وشي چه دَ زمکي له ټولو ټبرو نه چه دَ بادشاه خداوند دَ
لښکرو دَ وړاندِ و سجدي کولو ته په اورشليم ته ورنه ختيږي په هغو
به باران نه اوري ١٨ او که دَ مصر ټبر نه وختيږي او نه راشي نو ١٨
په دوي به باران نه اوريږي بلکه په دوي هم هغه مرګو وي چه
په هغي سره به خداوند هغه غير قومونه چه نه ورختيږي تاچه دَ جونګړو عيد
ومني ووهي ١٩ هم دا به دَ مصر سزا وي. او دَ ټولو قومونو سزا چه دَ ١٩
جونګړو عيد منلو ته نه ختيږي
٢٠ هغه ورځ به دَ اسونو په ګنګريو دا ليکل وي قُدس يَهوَه لره ٢٠
او دَ خداوند دَ کور ديګونه به له هغو کټوريو سره چه دَ مذبح دَ وړاندِ
ښبي دي برابر وي ٢١ بلکه په اورشليم او په يهوداه کښ به هر يو ديګ ٢١
دَ خداوند دَ لښکرو دَپارَ قُدس وي او هغوي ټول چه ذبيحه کوي
رابه شي او له هغوي به کوم يو واخلي او په هغو کښ به پخوي او په هغي
ورځي کښ به بيا هيڅ کنعاني دَ لښکرو دَ خداوند په کور کښ نه وي *

# دَ ملاکي نبي کتاب

## اول باب

۱ دَ خداوند الهامي کلام په لاس دَ ملاکي و اسرائيل ته ۲ خداوند ۱
فرمايي چه ما تاسي عزيز کړي يئ په دي هم تاسي وايئ چه تا
موږ څرنګ عزيز کړلو ګنړه عيسو دَ يعقوب ورور نه وَه څه ؟
خداوند فرمايي ۳ ليکن ما په يعقوب مينه وکړه او ما له عيسو ۳
سره دښمني وکړه او دَ هغه غرونه مِ ويران کړ او دَ هغه ميراث
دَ بياباني شغالانو لره ۴ اګر که آدوم وايي چه موږ خو نړېدلي يُو ليکن ۴
موږ به راوګرزو ويران مکانونه به آباد کړو خداوند دَ لښکرو داسي
وايي چه دوي خو به ئي آباد کړي مګر زه به ئي ونړوم او ددي به ئي
دَ شرارت حد و بولي او هغه قوم چه مدام خداوند پري غضب
کړي دي ۵ او ستاسي سترګي به ئي ويني او تاسي به ئي وايئ چه ۵
دَ خداوند بزرګي دِ دَ اسرائيل له سرحدّ د باندِ وشي
۶ ځوي دَ خپل پلار او نوکر دَ خپل خاوند تعظيم کوي نو که ۶
زه پلار يم نو ځما عزّت چرته او که خاوند يم نو ځما ډيره چرته
خداوند رب دَ لښکرو تاسي ته وايي اي کاهنانو چه ځما نوم سپک ګڼئ
نو هم تاسي وايئ چه په څه کښ مو ستا نوم سپک کړي دَي ۷ تاسي ځما ۷
په مذبح باندِ ناپاکي ډوډئ پيشي کوئ او وايئ چه په څه مو نه
ناپاک کړي په دي خبري ستاسو چه دَ خداوند خوانچه سپکه شوه او
چه تاسي ړانده دَ ذبحي دپاره ګذارئ نو ګنړه دا بد نه دِي څه ؟ -
۸ او که ګډان او رنځوران ګذارئ نو ګنړه دا بد نه دِي څه ؟ هغه ۸
خپل حاکم ته پيش کړه نو ګنړه هغه به له تا نه راضي شي څه ؟ او
هغه به ستا مخ کړي څه ؟ خداوند دَ لښکرو فرمايي ۹ اوس تاسي ۹

دَ الله مخ ته عرض کوئِ چه دَي په سوښ باندِ فضل وکړِي دا ستاسي
له لاسه شوِي دِي کنړه دي به ستاسو مخونه منظور کړِي څه ؟ -
۱۰ خداوند دَ لښکرو وايِي ۱۰ کاشکي چه ستاسي په منځ کښ داسي څوک
وَي چه دروازه بنده کړِي او نه څما په مذبح ويړيا اور بل کړِي زه له
تاسي راضِي نه يم خداوند رب دَ لښکرو فرمايِي او ستاسي دَ لاس
۱۱ هديه به هرګز قبوله نه کړم ۱۱ څکه چه له نمرخاته نه دَ هغه تر
پريواته پورِي به څما نوم دَ غير قومونو په منځ کښ بزرګ دئ او په
هر مکان کښ به څما په نوم باندِ لُبان او پاک هديي تيري شِي
څکه چه څما نوم به دَ قومونو په منځ کښ بزرګ دئ خداوند
۱۲ دَ لښکر رب فرمايِي ۱۲ ليکن تاسي هغه ناپاک کړ چه وايئِ چه دَ
خداوند خوانچه نجسه دَه او دَ هغه حاصل هو دَ هغه خوراک
۱۳ سپک دَي ۱۳ او تاسي وويل چه ګورئِ څومره ستومانِي دَه او په هغه
مو پُپه وکړ خداوند رب دَ لښکرو وايِي
بيا تاسي څيرلي شوئِ او ګډاڼ او رنځوران راوستل او په دي طور
سره مو هديه راوړه زه به هغه ستاسي له لاس نه قبوله کړم څه؟
۱۴ خداوند فرمايِي ۱۴ ليکن لعنت په هغه دغاباز دَي چه دَ هغه په
رمي کښ نر وِي او نضر پرِ کوِي مګر عيب‌ناک څيز خاوند ته ذبحه کوِي
څکه چه زه لوي بادشاه يم خداوند رب دَ لښکرو فرمايِي او
څما نوم به دَ قومونو په منځ کښ ويريونکَي وِي ❊

## دويم باب

۱ ۱ او اوس اي کاهنانو ستاسي دَپارَ دا حکم دَي ۲ که تاسي آوريدونکِي
نه شئِ او په زړه کښ دا نه لرئِ چه څما نوم ته تمجيد ورکړئِ
خداوند رب دَ لښکرو فرمايِي نو زه به لعنت په تاسي واستوم او زه
به ستاسي په برکتونو لعنت وکړم هو په هغو مِ لعنت کړي دَي دَي
۳ دَپارَ چه تاسي په هغي خبري زړه نه لګوئِ ۳ ګورئِ زه به ستاسي

دَ پارَ پہ تخم باندِ ترتنہ وکړم او ګندګي هو ستاسي دَ پاکو
عیدونو ګندګي چہ دِي ستاسي پہ مخ بہ ئي دروغورزوم او تاسو
بہ لہ هغي سره ورلي شئِ ۴ او تاسي بہ پوه شئِ چہ ما تاسي ٤
نہ دا حکم دراستولي دَي دَپارَ دَدي چہ ځما وعده لہ لاوِي سره
پاتي شي خداوند دَ لښکرو فرمائي ۵ ځما وعده دَ ژوند او دَ سلامتي ٥
دَپارَ چہ ما هغہ تہ دَ ویري دَپارَ ورکړه لہ هغہ سره وَه څکہ چہ
هغہ لہ مانہ ویریده او ځما دَ نامہ لہ حضور نہ پہ ترس کښ وُه
۶ دَ رښتیا تورات دَ هغہ پہ خولي کښ وُه او دَ هغہ پہ شونډو ٦
کښ هیڅ بدي موندہ نہ شوه هغہ لہ ما سره پہ سلامتي او راستي
چلیده او هغہ ډیر دَ بدي نہ راوګرځول ۷ څکہ چہ بائده دِي چہ ٧
کاهن پہ خپلو شونډو کښ علم وساتي او لازم دِي چہ خلق ده لہ
خولي نہ دَ تورات طلب وکړي دي دَپارَ چہ دَي دَ خداوند دَ لښکرو
رسول دَي ۸ لیکن تاسي لہ لاري نہ پہ ډیره شوئِ تاسو ډیرو لره پہ ٨
تورات کښ ټوکر ورکړ تاسي دَ لاوِي وعده خرابہ کړه خداوند دَ
لښکرو فرمائي ۹ او دي دَپارَ ما تاسي دَ ټول قوم دَ وړاندِ سپک او زار ٩
کړلئِ څکہ چہ تاسي ځما لاري ونہ ساتلي بلکہ تاسي پہ تورات کښ طرفدا
شولئِ

۱۰ کنزه موږ ټول دَ یوه پلار نہ یُو څه؟ کنزه موږ یوه خداي ١٠
پیدا نہ کړُو څه؟ پس څه سبب دَي چہ موږ دَ خپلو پلرونو او نیکونو
وعده ناپاکہ کوُو چہ پخپل منځ کښ سړي لہ وروور سره تکي کوِي
۱۱ یهوداه تکي وکړه پہ اسرائیل او پہ اورشلیم کښ یو مکروه کار ١١
شوي دَي یهوداه دَ خداوند مقدّس چہ دَي وړاندِ مین وه ناپاک
کړ او دَ بیګانہ معبود لور ئي پہ نکاح کړه ۱۲ خداوند هغہ سړي لره ١٢
چہ داسي کوِي ویښ او جواب کونکي او هغہ هم چہ خداوند دَ لښکرو
دَ وړاندِ هدیہ تیروِي پري بہ ئي کړِي دَ یعقوب لہ خیمو نہ ۱۳ او دغہ ١٣

تاسي دوباره کوئِ چه دَ خداوند مذبح سو په اوښکو او په ژړا او په
زګیروو پټ کوئِ نو دي حده چه دَي بیا هیچري هدیه قبوله نه کړي او
١٤ ستاسي له لاس نه هیچري په رضا وانه خلي ١٤ په دي هم تاسي وایئِ چه
څه سبب دَي سبب دا دَي چه خداوند ستا او ستا دَ ځواني دَ ښځي په
منځ کښ شاهد شه چه تا له دي سره تکي کړي دَه خو هم هغه ستا
١٥ ملګري او ستا دَ وعدي ارتینه دَه ١٥ کنه هغه یو جوړ نه کړ څه؟ چه بقیّه
دَ روح لري او هغه یوه ولي؟ تاچه دَ الله نسل ولټوي دي دپارَ تاسي
په خپل روح باندِ خبردار شئِ او هیڅوک دِ دَ خپلي ځواني له ارتیني سره
١٦ تکي ونه کړي ١٦ ځکه چه خداوند دَ اسرائیل الله فرمايي چه زه له طلاق
نه نفرت کوم او له هغه هم چه له ظلم سره خپلي جامي پټي کوي
خداوند دَ لښکرو فرمايي دي دپارَ تاسي په خپل روح باندِ خبردار شئِ تا
چه تکي ونه کړئِ
١٧ ١٧ تاسي په خپلو خبرو خداوند ستړي کړي دي نو هم تاسي وایئِ
چه په کومي خبري کښ موږ دي ستړي کړي دي؟ په دي چه وایئِ چه
هرڅوک چه بد کوي نو دَ خداوند په سترګو کښ نیک دَي او دي ورنه
خوښ دَي او دا چه دَ انصاف الله چرته دَي *

## دریم باب

١ ګوریِ زه به خپل رسول درواستوم او هغه به څما دَ وړاندِ څما
لار درسته کړي او هغه خاوند چه تاسي ئي په طلب کښ یئِ هو دَ
وعدي رسول چه تاسي ورنه خوښ یئِ هغه به ناڅاپه خپل هیکل ته راشي
٢ ګوریِ هغه به په یقین سره راشي خداوند دَ لښکرو فرمايي ٢ لیکن دَ
هغه دَ راتلو په ورځ به څوک زغم وکړي او چه هغه ښکاره شي نو څوک
٣ دَي چه ودرته وبه دریږي ٣ ځکه چه هغه دَ زرګر دَ اور او دَ دوبي دَ
صابون په دود دَي او هغه به کښیني دَ سپینو زرو څخ به لري کړي اوخالصه
به ئي کړي او هغه به بني لاوي پاک کړي: دَي به هغوي دَ سپینو او دَ

چه دَ خداي عبادت کول عبث دِي او څه فائده ئي ده چه مونږ دَده حکمونه
ساتلي دِي او خداوند دَ لښکرو دَ وړاندِ دَ وِير په لباس کښ تللي يو
۱۵ ۱۵ او اوس مونږ مغرورانو لره نيکبخت وايُو هو هغوي چه شرارت کوِي
بنا کيږِي هغوي چه الله هم ازمايي آزادِي مومِي.
۱۶ ۱۶ نو هغوي چه له خداوند. نه ويريږِي هر سړي خپل دوست
ته خبرې وکړِي او خداوند غوږونه کيښودل وائي وريدل او دَ هغو دَپارَ
چه له خداوند نه ډاريږِي او دَده په نوم فکر کوِي نو دَده دَ وړاندِ دَ
۱۷ يادګارِي کتاب وليکلي شه ۱۷ په هغي ورځي چه زه ئي جوړونکي يم خداوند
دَ لښکرو فرمايي هغوي به حاصل ځما خزانه وِي او لکه چه څوک پخپل
زوي باندِ چه دَده خدمتګارِي کوِي شفقت کوِي زه به په دوي شفقت وکړم
۱۸ ۱۸ نو به تاسي وګورِئ او دَ صادق او دَ شرير په منځ کښ دَ هغو په منځ کښ
چه دَ خداي بندګي کوِي او چه دَده بندګِي نه کوِي تميز به وکړِئ ٭

## څلورم باب

۱ آ ځکه ګورِئ هغه ورځ راځِي چه دَ تنور په دود به سوزيدونکي وِي نو به
ټول مغروران او هر يو چه شرارت کوِي خس به شِي او هغه ورځ چه
راځِي هغوي به وسيځِي خداوند رب دَ لښکرو فرمايي داسي چه دُ هغو به
۲ نه بيخ پريږدِي نه ښاخونه ۲ ليکن په تاسو باندِ چه ځما له نامه ويريږِي دَ صداقت
نمر به وخيژِي او دَ هغه په وزرو کښ به شفا وِي او تاسي به ووزِئ او دَ غوجلي
۳ دَ سخوندرانو په شان به ټرنجکي کوئ ۳ او شريران به پائمال کړِئ ځکه هغه ورځ چه
زه دا وکړم نو دوي به ستاسي دَ پښو تر تليو لاندِ ايرِي وِي خداوند دَ لښکرو فرمايي
۴ ۴ ځما دَ بنده موسى تورېت په ياد کاږِئ له ټولو مسائلو او فتواوُ سره
۵ چه ما ده ته په حوريب کښ دَ ټول اسرائيل دَپارَ حکم وکړه ۵ ګورِئ زه به
الياس نبي دَ خداوند دَ لويِي او هيبتناکي ورځي له راتلو نه وړاندي در
۶ واستوم ۶ او هغه به دَ پلارونو زړونه وځامنو ته او دَ ځامنو زړونه و
پلارونو ته وګرزوِي هسي نه چه زه راشم او دنيا په لعنت سره ووهم ٭



پښتو شوي له اصلي يوناني ژبي نه په قلم د غلام جيلاني

ΑΡΧΗ
ΤΟΥ ΕΥΑΓΓΕΛΙΟΥ ΙΗΣΟΥ ΧΡΙΣΤΟΥ



# کتاب د نوي عهد




در مطبع ثانیس پرنت شد
۱۹ الدگیت لندن

# کتاب دَ نوي عهد

یعني

دَ خداوند یسوع مسیح

## انجیل

چه پښتو شوي له اصلي یوناني ژبي نه

سنه ۱۸۸۹ عیسوي

Family INDO-EUROPEAN
Sub-Family INDO-IRANIAN
Branch IRANIAN
Group NON-PERSIC
Language PAṢHTŌ
Dialect
Locality
Contents New Testament (Vol. IV)
Version revised by Pashto Revision Comm.
Translated originally by T. J. L. Mayer
Published by BFBS
Place London
Date 1890

NEW TESTAMENT IN PASHTU.

TRANSLATED BY REV. T. J. L. MAYER, AND REVISED BY THE PASHTU REVISION COMMITTEE.

THE BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY,
LONDON.

1890.

MADE IN ENGLAND.

# انجيل دَ مُقَدَّس مَتّي

## اول باب

۱ ۱ کتاب دَ نسب نامي دَ يسوع مسيح ځوي دَ داؤد ځوي دَ ابراهام
۲ ۰ ۲ ابراهام اسحاق وزيږوه او اسحاق يَعقوب وزيږاوه او يعقوب
۳ يَهُودا او وروڼه دَده وزيږول ۳ او يهودا پرص او زارح له ثاماره وزيږول
۴ او پَرص حَصرون وزيږاوه او حَصرون رام وزيږوه ۴ او رام عُمّيناداب
وزيږاوه او عُمّيناداب نحشون وزيږوه او نحشون سَلما وزيږوه
۵ ۵ او سَلما بُعز له رحابي نه وزيږوه او بُعز عُبيد له رُوتي وزيږوه
۶ او عُبَيد يَشي وزيږاوه ۶ او يَشي داؤد بادشاه وزيږوه او داؤد
۷ سُلَيمان وزيږاوه له هغي نه چه دَ اوريا وه ۷ او سليمان رَحبعام
۸ وزيږوه او رَحبعام اَبياه وزيږوه او ابياه آصا وزيږوه ۸ او آصا
يَهوشافاط وزيږوه او يهوشافاط يُورام وزيږوه او يورام اَعزِياه وزيږوه
۹ ۹ او اَعزِياه يُوثام وزيږوه او يوثام احاز وزيږوه او احاز حِزقيا وزيږوه
۱۰ ۱۰ او حزقيا مَنَسَّه وزيږوه او منسه اَمُون وزيږوه او اَمُون يُوشيا
۱۱ وزيږوه ۱۱ او يُوشِيا يکُنياه او وروڼه دَده وزيږول چه په وقت
دَ جلاوطنۍ بابل ته
۱۲ ۱۲ او پس له جلاوطنۍ بابل ته يکُنياه شَألتيل وزيږاوه او شَألتيل
۱۳ زَرُبابَل وزيږاوه ۱۳ او زربابل اَبيهُود وزيږاوه او اَبيهُود اِليَقيم وزيږاوه
۱۴ او اِليقيم عَزُور وزيږاوه ۱۴ او عَزُور صَدُوق وزيږاوه او صدوق اَکيم
۱۵ وزيږاوه او اکيم اَليهُود وزيږاوه ۱۵ او اليهود اِليعَزَر وزيږاوه او اِليعزر
۱۶ متّان وزيږاوه او متان يعقوب وزيږاوه ۱۶ او يعقوب يوسف وزيږاوه چه
سړي دَ مريمي وه چه يسوع هغه چه مسيح بللي شه له هغه نه وزيږيده
۱۷ ۱۷ بيا ټولي پيړۍ له ابراهام نه تر داؤدَ پوري څوارلس پيړۍ دي او له داؤد
نه تر جلاوطنۍ د بابل ته څوارلس پيړۍ او له جلاوطنۍ د بابل ته تر مسيح

پوري څوړلس پيړۍ
۱۸ نو زيږيدنه دَ يسوع مسيح داسي وه چه دَده مور مريَمه دَ يُوسف ۱۸
چنغله وَه دَدوي له يو ځاي كيدو لا وړاندِ ئي له روحُ القُدُس حَامِله پيامندلي شوه
۱۹ او دَ دي سړي يُوسف چه صادق سړي وه او نه ئي غوښت چه رسوائي كړي ۱۹
نو اراده ئي وكړه چه په پټه ئي پريږدي ۲۰ نو دي خولا دَدي خبرو په فكر كښِ وه كوره ۲۰
چه يَوه فرښته دَ خداوند په خوب كښِ ورته ظاهره شوه و ئي ويل چه
اي يُوسفَ دَ داؤد ځويَ له اَخِستلو دَ خپلي ښځي مريمّي ويَره مه كوه ځكه چه
هغه شَي چه په دي كښِ حمل شوي دَي له روحُ القُدُس دَي ۲۱ او ځوي به
راوړِي او ته به نوم دَ هغه يسوع وبولي ځكه دي خپل اُمّت
به له خپلو گناهونو نه خلاص كړِي ۲۲ دا ټول وشول چه هغه چه خداوند ۲۲
دَ پيغمبر په خولي ويلي وُو پوره شي چه ويل به ئي ۲۳ چه ۲۳
كوره پيغله به حَامِله شي او ځوي به راوړِي
او دوي به دَ هغه نوم عِمّانوئيل وبولي
چه معنيٰ ئي دا ده چه الله له موږ سره ۲۴ نو يُوسف له خوبَ پورته ۲۴
شه او هغه شان لكه چه دَ خداوند فرښتي ورته فرمايلي وُو و ئي كړل
او خپله ښځه ئي واخستله ۲۵ او تر هغه پوري چه ځوي را نه وړ و ئي نه ۲۵
پيژاندله او دَ هغه نوم ئي يسوع وباله ❖

## دويم باب

۱ هركاه چه يسوع په بَيْتِ لَحْمِ دَ يَهُوْدِيّه كښِ په ورځو دَ هيروديس ۱
بادشاه كښِ پيدا شه نو كوره مجوسيان دَ مشرق له طرفَ اورشليم
ته راغلل ۲ و ئي ويل چه چرته دَي هغه پيدا شوي بادشاه دَ يَهُوديانو ۲
ځكه چه موږ دَ هغه ستوري په مشرق كښِ وليد او دَ سجدي كولو
دَپارَ ورته راغلِي يُو ۳ او چه هيروديس بادشاه دا واوريدل نو دي ۳
وترسيده او ټول اورشليم له ده سره ۴ نو ټول بزرگ كوهِنّان او ۴
كاتِبان دَ قوم ئي جمع كړل او پوښتنه ئي ورنه وكړه چه مسيح به په

٥ کوم ځاي کښ زيږيږي؟ ٥ ور ته وئي ويل چه په بيتِ لحم د يهوديه
کښ ځکه چه له پيغمبر دا رنګ ليکلي شوي دي
٦ ٦ او نه اي بيتِ لحم د يهوديې زمکي
له نورو سردارانو د يهوديې وړوکي نه يي
ځکه چه ستا له مينځ به يو سردار را ووزي
چه ځما د قوم اسرائيل به وڅروي
٧ ٧ هغه وخت هيروديس مجوسيان په پټه وبلل او په غور سره ئې
٨ د ستوري د ظاهريدلو د وخت پوښتنه ور نه وکړه ٨ او بيتِ لحم ته
ئې واستول او وئي ويل چه لاړ شئ او په غورسره د هغه هلک په باب
پوښتنه وکړئ او هر کله چه مو بيا موند نو ما خبر کړئ چه زه هم ورشم
٩ او سجده ور ته وکړم ٩ دوي چه د بادشاه نه واوريدل نو ور روان
شول او کوره هغه ستوري چه په مشرق کښ وليد په مخ کښ ئې تر
هغه پوري ته چه په هغه ځاي باندِ راغي چه هغه هلک وه او پاس
١٠ ودريده ١٠ او هغوي چه هغه ستوري وليد نو ډير ډير خوشحال شول
١١ ١١ نو کور ته ورغلل هغه هلک ئې له خپلي مور مريمّ سره وليد
او پريوتل سجده ئې ور ته وکړ او خپل سوغاتونه ئې
١٢ پرانتل سره زر او لوبان او مُرّ ئې ور ته پيشکش کړل ١٢ او په خوب
کښ خبردار کړي شول چه هيروديس ته دِ بيرته ور نه شي نو په بلي
لاري خپل وطن ته وګرزيدل
١٣ ١٣ هرکاه چه دوي وګرزيدل نو کوره چه يوه فرښته د خداوند
يوسف ته په خوب کښ ښکاره شوله وئي ويل چه پاسه هلک او
مور ئې واخله او مصر ته وتښته هلته اوسه تر هغه پوري چه زه
دِ خبر کړم ځکه چه هيروديس به هلک ولټوي تا چه هلاک ئې کړي
١٤ ١٤ نو دي پورته شه هلک او مور ئې په شپه کښ واخستل مصر
١٥ ته روان شه ١٥ او د هيروديس تر مرګ پوري هلته کښ وُو تا چه

هغه چه خداوند دَ پیغمبر په خولي ویلي وُو پوره شي چه ویل یُ
چه خپل ځوي مې له مصر نه راوباله
۱۶ هرکاه چه هیرودیس دا ولیده چه له مجوسیانو مسخري کړي شه ۱۶
نو ډېر په قهر شه او واستول ټول هلکان دَ بیتِ لَحَمْ او دَ هغه ګېر
چاپېر چه دوه کلني او چه تردغه کم وُو موافق دَ هغه وقت
چه له مجوسیانو یُ په غور سره تحقیق کړي وه ووژلل-
۱۷ نو هغه چه یرمیا پیغمبر ویلي وُو پوره شوه چه ۱۷
۱۸ په رامه کښ آواز واوریدي شه ۱۸
دَ ویر او دَ لوي ماتم
چه راحیل په خپلو ځامنو ژړا کوي
او تسلي به یُ نه غواړي ځکه چه هغوی نشته دي
۱۹ چه هیرودیس مړ شه ګوره چه یوه فرښته دَ خداوند په ۱۹
مصر کښ یوسف ته په خوب کښ ظاهره شوه ۲۰ و یُ ویل چه پاسه ۲۰
او هلک او مور یُ واخله او دَ اسرائیل زمکي ته لار شه ځکه چه
هغه څوک چه دَ هلک دَ ځان طلبکار وُو مړه شول ۲۱ نو دي پورته شه هلک ۲۱
او مور یُ واخستل دَ اسرائیل زمکي ته راغي ۲۲ او چه دا یُ واوریدل ۲۲
چه ارخلاوس دَ خپل پلار هیرودیس په ځاي په یهودیه بادشاهي
کوي نو دَ هغه لوري له تللو ووېرېده هم په خوب کښ خبردار کړي شه نو
دَ جلیل اطرافو ته وګرزیده ۲۳ او یوه ښهر ته چه ناصرت باله شه ۲۳
ورغي هلته ووسېد ځکه چه هغه چه پیغمبرانو ویلي وُو پوره شي
چه هغه ته به نصراني ویللي شي

## دریم باب

۱ او په هغو ورځو کښ یوحنا بپتسما ورکونکي ورسید په بیابان دَ ۱
یهودیې کښ یُ وعظ کاوه ویل یُ ۲ چه توبه کوئ ځکه چه بادشاهي ۲
دَ آسمانونو نژدي ده ۳ ځکه چه دا هغه دي چه له اشعیا پیغمبر یُ ذکر ۳

ښوي وه ويل ئي

په بيابان کښ دَ ناري وهونکي آواز

دَ خداوند لار طياروئ

او سړکونه دَده سم کړئ

۴ ۴ نودي يُوحَنّا جامي دَ اُوښ دوړيو لرلي او دَ څرمني کمربند ئي تر ملا وه

۵ او خوراک ئي ملخ او ځنګَلِي شهد وُو ۵ هغه وقت اورشليم او ټوله

٦ يَهُودِيَه او ټول ګيرچاپير دَ اَرْدَنَ هغه ته ووتل ٦ او په خپلو ګناهونو

۷ قايل شوي په اَرْدَنْ کښ ئي بپتسما ورنه وموندله ۷ مګر چه ده

ډير دَ فَرِيسيانو او دَ صُدُّقيانو وليدل چه دَده بپتسما ته راځي نو ورته

و ئي ويل چه اي دَ مَنْکور زاده ؤُ چا در وښييل چه له راتلونکي

۸-۹ غضبَ وتښتئ ۸ نو لايق ميوه دَ توبي راوړئ ۹ او په خپلو ځانونو کښ دَدي

خبري ويلو فکر مه کوئ چه اَبْراهام پلار لرو ځکه چه زه تاسو

ته وايم چه الله قادردَي چه له دي کاڼو نه به اَبْراهام له ځامن پاڅوي

۱۰ ۱۰ او اوس تبر په بيخ دَ ونو ايښې شوي دي نو هره ونه چه نيکه ميوه

۱۱ نه راوړي هغه به پريکړي او په اور کښ به وغورزولي شي ۱۱ زه

تاسو ته دَ توبي دَپارَ په اوبو بپتسما درکوم مګر هغه چه ورستي له

ما نه راځي له ما نه زيات قوّت ناک دي زه دَ هغه دَ څپلايو دَ اخستلو

لايق نه يم هغه به تاسو له په رُوحُ الْقُدُس او په اور بپتسما درکړي۔

۱۲ ۱۲ هغه چه دَده چج په خپل لاس کيږدِي او خپل درمند به په ښه شان

پاک کړي او خپل غنم به په خپلي انبارخاني کښ جمع کړي مګر بوس به په

هغه اور سره چه نه مړي وسيځي

۱۳ ۱۳ نو يسوع له جَلِيلَ په اَرْدَنْ يُوحَنّا ته راغي چه بپتسما

۱۴ ورنه وموي ۱۴ مګر يُوحَنّا به منع کاوه او ويل به ئي چه زه حاجت

۱۵ لرم چه له تا نه بپتسما وموم او ته ما ته راځي څه؟ ۱۵ يسوع په

ځواب کښ ور ته وويل چه اوس پريږده ځکه چه په موږ داسي لازم

۱۶ دِي چه ټول صداقت پوره کړو پس هغه ئې پرېښود ۱۶ او يسوع چه
بپتسما ومونده له نو دستي له اوبو را وخوت او کوره چه آسمانونه ورته
پرانتلي شول او روح دَ اَلله لِي وليد چه دَ کوترې په شان راکوزيده
۱۷ او په ده بانْدِ راغي ۱۷ او کوره چه آواز له آسمانونو راغي چه ويل
ئې چه دا دَي هغه محبوب ځوي ځما چه زه پرِ خوښ يم *

# څلورم باب

۱ آ نو يسوع له رُوحُ القُدُس بيابان ته بوتلي شه چه دَ اِبلِيس وآزمايلي
۲ شِي ۲ او هرکاه چه څلويښت ورځي او شپي ئې روژه ولرله آخر وږي
۳ شه ۳ نو ازمايُونکي ورغي ورته و ئې ويل چه که ته اِبنُ الله يي
۴ نو ووايه چه دا کاڼِي ډوډئِ شِي ۴ ده په ځواب کښ وويل چه ليکلِي
دِي چه سړي به نه تش په ډوډئ ژوندي وِي بلکه په هرې خبرې
۵ چه دَ اَلله له خولي راووزِي ۵ هغه وقت اِبلِيس مُقَدَّس ښهر ته
۶ بوت او دَ هيکل په کُنګرِي بانْدِ ئې ودراوه ۶ ور ته و ئې ويل چه که
ته دَ اَلله ځوي يي نو خپل ځان ښکته وغورزوه ځکه چه ليکلِي
شوِي دِي چه

دَي به ستا دَپارَ خپلو فرښتو ته حکم ورکړي
او هغوي به تا په خپلو لاسونو کښ پاس ونيسي
هسي نه چه ته خپلي پښي په کاڼِي بانْدِ ووهي

۷ ۷ يسوع ورته ووِ چه دا بيا ليکلِي دِي چه
ته خداوند اَلله خپل مه اَزمايه

۸ ۸ بيا اِبلِيس يو ډير لوړ غره ته بوته او ټول بادشاهتونه دَ دُنيا او دَ
۹ هغو لويي ئې ور ښکاره کړلَ ۹ ورته و ئې ويل چه که ته پريوزي او
۱۰ سجده را ته وکړي نو دا به ټول تا ته درکړم ۱۰ نو يسوع ورته ووِ
چه لري شه اي شَيطانَ ولي چه ليکلِي شوِي دِي چه
ته خداوند اَلله خپل ته سجده کوه

او يواځي دَ هغه عبادت كوه
۱۱ ۱۱ نو اِبليس دي پرېښود او گوره فرښتي ور ته راغلي او خدمت دَده
ئي وكړ
۱۲ ۱۲ هرگاه چه ئي واوريدل چه يُوحَنّا وسپارلي شه نو جَليل ته
۱۳ پستنه ورغي ۱۳ او ناصِرت ئي پرېښود راغي په كَفرنَحُوم كښ چه دَ درياب
۱۴ په غاړه او دَ زَبلُون او دَ نَفتالِي په سرحد كښ دي ووسيد ۱۴ دي دَپاره
چه هغه چه اشعيا نبي ويلي دِي پوره شِي چه
۱۵ ۱۵ زمكي دَ زَبلُون او زمكي دَ نَفتالِي
لار دَ درياب پوري غاړه دَ اُردَن
دُ غير قومونو جَليل
۱۶ ۱۶ هغه اُمَّت چه په تيارې كښ كښيناستونكي وُو
لويه نُور ئي وليده
او هغو ته چه په ملك او دَ مرگ په سورِي كښ كښيناستونكي وُو
نور را وخوت
۱۷ ۱۷ له هغه وقت يسوع په وعظ كولو سر شه و ئي ويل چه
توبه وكړئ چه بادشاهي دَ آسمانونو نژدي ده
۱۸ ۱۸ او چه دَ جَليل دَ درياب څنگه گرزيده دوه ورونړه يو
شَمعُون چه پِطرَس ور ته وايي او دَ هغه ورور اَندرياس و ئي
ليدل چه په درياب كښ ئي جال اچوه ځكه چه دوي ماهي گيران وُو
۱۹ ۱۹ ور ته ئي وُوِ چه په ما پسي راځئ چه زه به تاسو دَ سړيو ښكاريان كړم
۲۰-۲۱ ۲۰ او هغوي دستي جالونه پرېښول او په ده پسي روان شول ۲۱ او چه
له هغه ځايَ په وړاندِ تيريده نو دوه نور ورونړه يَعقُوب زوي دَ زَبدِي او
او ورور دَده يُوحَنّا ئي وليدل چه له خپلَ پلارَ زَبدِي سره په بيړئِ كښ خپل جالونه
۲۲ جوړوِي او هغوي ئي وبلل ۲۲ دستي ئي بيړئِ او خپل پلار پرېښودل
په ده پسي روان شول

٢٣ نو يسوع په ټول جَلِيل کښې ګرزيده. دَ هغو په جماعتونو ٢٣
کښې ئې تعليم ورکاوه او دَ بادشاهئِ په زيرِي وعظ ئې کاوه او هر
رنځ او هري ناجوړتيا دَ خلقو له ئې شفا ورکوله ٢٤ او آوازه دَده ٢٤
په ټوله سُريا کښې خوره شوه او ټول رنځوران چه په قسم قسم رنځونو
او عذابونو مبتلا وُو او ديوانګان او ميرګيونيِ او ګوزن وهلي ئې ده
ته راوستل او ده شفا وربخښله ٢٥ او ډير خلق له جَلِيلَ او له دکاپولِسَ ٢٥
او له اورشليمَ او له يَهُودِيَې او له پوري غاړي دَ اُردنَ په ده پسي روان شول

## پنځم باب

١ او چه هغه ټولئِ وليدل نو په غره وخوت چه ناست وه ١
نو شاګردان ئې ورغلل ٢ ده خپله خوله پرانتله هغو ته ئې تعليم ورکاوه ٢
او ويل ئې چه

٣ مبارک دَ روح خواران دِي ځکه چه بادشاهِي دَ آسمانونو دَ هغو ده ٣
٤ مبارک وِير کونکي دِي دي دَپارَ چه تسلِي به بيا مومِي ٤
٥ مبارک حَلِيمان دِي ځکه چه دَ زمکي وارثان به شِي ٥
٦ مبارک هغه دِي چه دَ صداقت وږي تږي دِي ځکه چه ٦
ماړه به کړي شِي
٧ مبارک رحم کونکي دِي دي دَپارَ چه په دوي به رحم وکړي شِي ٧
٨ مبارک پاک زړوني دِي ځکه چه الله به ووينِي ٨
٩ مبارک صلح کونکي دِي ځکه چه دَ الله ځامن به دوي وبلل شِي ٩
١٠ مبارک دِي هغه چه دَ صداقت په سبب ربړولِي شوي دِي له دي ١٠
سببَ چه بادشاهِي دَ آسمانونو دَ دوي ده
١١ مبارک تاسو يئِ چه څما دَپارَ هغوي په تاسو پيغور کوي او ١١
ربړوِي مو او ټولي بدي خبري په دروغو سره په تاسي وايِي
١٢ خوشحاليږئِ او ډيره خوښئِ کوئِ دي دَپارَ چه ستاسو اجر په ١٢
آسمانونو کښې لوي دي ځکه چه دوي هغه نبيان چه له تاسي

نه وراندي وُو په دي شان ئي وربرول
۱۳ ۱۳ تاسو دَ زمکي مالگه يئِ مگر چه مالگه خرابه شِي نو په کوم شي
به مالگينه شِي نو په هيڅ کار نه راځِي بي له دي نه چه باهر وغورزولي شِي
۱۴ اوله سړيو پايماله کړي شِي ۱۴ تاسو نُور دَ عالم يئِ امکان نه لرِي چه هغه ښهر
۱۵ چه پاس په غره باندِ يښي شوي وِي پټ شِـــي ۱۵ هيڅوک ډيوه نه
بلوِي چه تراوږي لاندِ ئي کيږدِي بلکه په ډيوټ باندِ پس هغـــو ټولو چه په کور کښ دِي
۱۶ رڼا ورکوِي ۱۶ هم داسي دِ نُور ستاسو دَ سړيو دَ وړاندِ وځلیږِي تا چه
ستاسو نيک کارونه ووِينِي او ستاسو دَ پلارِ چه په آسمانونو کښ دي
تمجيد وکړِيَ
۱۷ ۱۷ گُـــمان مه کوئِ چه زه دَ توريت يا دَ نبيانو دَ صحيفو دَ
منسوخ کولو دَپارَ راغلي يم منسوخ کولو دَپارَ نه بلکه دَ کامِلَولو دَپـــارَ راغلي
۱۸ يم ۱۸ ځکه چه تاسو ته رښتيا وايم چه تر هغه پوري چه آسمان او
زمکه لري نه شِي يو همزه يا يوُ تکي به له توريت نه بيځي لرِي نه شِي
۱۹ تر هغه چـــه تول وِ نه شِي ۱۹ پس هغـــه څوک چـــه يـــو ورُوکي
له دي حکمونو نه مات کړِي او په هغه شان ئي سړيو ته وښيِ هغه
به په بادشاهئِ دَ آسمانونو کښ وړوکي وباله شِي مگر هغه څوک
چه عمل کوِي او وئي ښيِي هم هغه به دَ آسمانونو په بادشاهئِ کښ
۲۰ لوي وباله شِي ۲۰ ځکه زه تاسو ته وايـــم چه کهٔ ستاسو صداقت
دَ کاتبانو او دَ فرِسِيَّانو له صداقت نه زيات نه شِي نو په بادشاهئِ
دَ آسمانونو کښ به هرگز داخل نه شئِ
۲۱ ۲۱ تاسو اوريدلِي دِي چه وړاندِينو ته ويلي شوِي دِي چه قتل
۲۲ مه کوئِ نو هغه څوک چه قتل وکړِي دَ عدالت لائق به شِي ۲۲ مگر زه
تاسو ته وايم چه هر څوک چه خپل ورور تـــه قهـــر وکړِي
نو لائق دَ عدالت به شِي او هغه څوک چه خپل ورور ته راقا [يعني
سپک] ووائِي لائق دَ جرگي به شِي او که څوک اي احمقَ ووائِي لائق دَ

جَهَنَّم دَ اور به شِي ٢٣ پس که ته نذر خپل قربانګاه ته وړاندِ کړي او ٢٣
هلته دریاد شِي چه ستا ورور په تا باندِ څه لرِي ٢٤ نو ته نذر خپل ٢٤
هلته دَ قربانګاه دَ وړاندِ پرېږده او لاړ شه اوّل له ورور خپل سره
روغه وکړهِ پس له هغه راشه او خپل نذر وړاندِ کړه ٢٥ له خپل ٢٥
مدعِي سره تر هغه پورِي چه په لار کښ ورسره يې زر روغه وکړه
هسي نه چه مدعِي دِ قاضِي ته وسپارِي او قاضِي دِ دروغه ته
وسپارِي او ته په قيدخانه کښ واچولي شِي ٢٦ زه تاسو ته په رښتيا ٢٦
سره وايم چه ترڅو چه اخيره کاسيره ادا نه کړي تر هغه به له هغه
ځايَ بهر ونه ووزي

٢٧ اوريدلِي مودِي چه ويلِي شوِي وه چه زِنا مه کوه ٢٨ ليکن ٢٧ ٢٨
زه تاسي ته وايم چه هغه څوک چه ښځِي ته په شهوت سره نظر وکاندِ
هم هغه ساعت يې په خپل زړه کښ له هغي سره زِنا کړي ده ٢٩ نو که ٢٩
ستا ښئِ سترګه تا ته بدرَي درکړِي ويې باسه او له خپلَ ځانَ يې وغورزوه
ځکه چه ستا دَپارَ دا فائِده منده ده چه يَو ستا له اندامُونو نه ورک
شِي او نه چه ټول جُسه دِ په دوزخ کښ واچولي شِي ٣٠ او که ٣٠
ستا ښي لاس تا ته بدرِي درکړِي نو پري يې کړه اوله ځانَ يې وغورزوه ځکه چه
ستا دَپارَ دا فائِده منده ده چه يَو له اندامُونو ستا ورک شِي او نه چه ټول
جسه دِ په دوزخ کښ واچولي شِي ٣١ او ويلِي شوي وه چه هرڅوک ٣١
چه خپله ښځه پرېږدِي طلاقنامه دِ هغي ته ورکړِي ٣٢ مګر زه تاسو ته ٣٢
وايم چه هر څوک چه خپله ښځه بي له سبَبَ دَ زِنا پرېږدِي هم دي
په هغي زِنا کوِي او هر څوک چه له پرېښِي شوي سره نکاح وکړِي
زِنا کوِي

٣٣ بيا تاسو اوريدلِي دِي چه وړاندينو ته ويلِي شوِي وه چه ٣٣
په دروغ سره قسم مه خوره مګر قسمونه خپل په خداوند پوره کوه۔
٣٤ ليکن زه تاسو ته وايم چه هرګز قسم مه خوړِئ نه په آسمان باندِ ٣٤

٣٥ ځکه چه دا دَ الله تخت دي ٣٥ نه په زمکه چه دا يُ دَ پښو دَ لاندِ تکيه
٣٦ دَه نه په اورشليم ځکه چه دا دَ لوي بادشاه ښهر دي ٣٦ او مه په خپل
سر قسم خوره ځکه چه ته نه توانيږي چه يو ويښته سپين يا تور
٣٧ يُ کړي ٣٧ مګر خبري ستاسي دِ هو هو او نه نه وِي او هغه چه
له دغو نه زيات دَي له شريرَ دِي

٣٨ ٣٨ تاسو اوريدلِي دِي چه ويلِي شوِي دَه چه دَ سترګه په بدله
٣٩ سترګه او غاښ پــه غاښ ٣٩ ليکن زه تاسو ته وايم چه له بَد سره
مقابله مه کويُ بلکه هرڅوک چه دِ په ښِي انګيِ په څپيړه ووهِي ته
٤٠ بل هم ورواړوه ٤٠ او که څوک وغواړِي چه په تا دعوىٰ وکړِي او قَمِيص
٤١ دِ درنه اخلِي نو ته قَبــا هم ورپريږده ٤١ او که څوک دِ يــو
ميل پوري په بيګار بيايِي نو ته له هغه سره دوه لاړ شــه
٤٢ هرڅوک چه له تا نه څه وغواړِي ور يُ کړه او چه پور درنه وغواړِي
مخ ترِ مه ګرزوه

٤٣ ٤٣ اوريدلِي مو دِي چه ويلِي شوِي دَه چه له خپلَ ګوانډِي
٤٤ محبّت کوه او دَ خپل دُښمن سره عداوت ٤٤ مګر زه تاسو ته وايم
چه له خپلو دُښمنانو سره محبّت کويِ او دَ هغوي دَپارَ چه تاسو
٤٥ زَبَرَوِي دُعــا غــواړيِ - ٤٥ چه تاسو دَ خپل پلار چه په آسمان
کښ دي ځامن شيُ ځکه چه هغه خپل نمر په بدانو او په نيکانو
٤٦ را خيژوِي او په عادلو او په بيعدلو باندِ باران وروِي ٤٦ که چرِي تاسو
له هغو محبّت وکړيِ چه له تاسو سره محبّت کوِي نو ستاسو څه اجر دي
٤٧ اِجاره داران هم داسي نه کوِي څه؟ ٤٧ او که تاسو تش په خپلو ورونړو
٤٨ سلام واچويُ نو څه زيادتِي کويِ غير قومونه هم داسي نه کوِي څه؟ ٤٨ پس
تاسو کامل شيِ لکه چه ستاسي آسماني پلار کامل دي ✦

## شپږم باب

١ ١ خبردار شيِ چه صداقت خپل دَ سړو په مخ کښ مه کويِ هغوئه دَ

ښكاره كولو دَپارَ او كه نه نو له خپلَ پلارَ ئخنه. چه په آسمانونو كښ
دي اجر مو نشته

۲ پس هر كله چه ته خيرات وركوي نو په خپل مخ كښ قرنا ۲
مه غږوه لكه چه رياكاران ئې په جماعتونو او په كوڅو كښ كوي دي دَپارَ
چه له خلقو وستايلي شي زه تاسو ته رښتيا وايم چه دوي اجر خپل
بياموندلي دي ۳ ليكن چه ته خيرات وركوي نو هر څه چه ستا ۳
ښي لاس كوي ستا كيڼ لاس پرِ خبر نه شي ۴ تا چه ستا خيرات ۴
په پټه كښ وشي او ستا پلار چه په پټه كښ وِيني په ظاهره به تا
له اجر دركړي

۵ او هر كله چه تاسو دُعا كوئ نو دَ رياكارانو په شان ۵
مه شئ ولي چه دوي په جماعتونو او په كُنجونو دَ لارو كښ په ولاړه
په دُعا كولو مِينه لري چه سړو ته ښكاره شي زه تاسو ته رښتيا
وايم چه دوي خپل اجر بياموندلي دي ۶ مگر ته هغه وقت چه دُعا ۶
كوي نو خپلي كوټكئ ته ننوزه دروازه بنده كړه خپل پلار ته چه په
پټه كښ دَي دُعا كوه نو پلار ستا چه په پټه كښ وِيني ستا ته به
اجر دركړي ۷ او چه دُعا كوئ نو دَ غيرو قومونو په شان ۷
بيا بيا مه وائ ځكه چه دوي داگُمان كوي چه په ډيرو ويلو
سره به دَ هغو واوريدلي شي ۸ پس دَ هغو په شان مه شئ ځكه ۸
چه ستاسو پلار ستاسو په حاجتونو وراندِ له ور نه
غوښتلو پوهيږي ۹ نو تاسو په دي شان دُعا كوئ چه اي ۹
خمونږ پلارَ چه په آسمانونو كښ يي نوم ستا دِ مُقَدّس وِي ۱۰ بادشاهي ۱۰
ستا دِ راشي اِراده ستا لكه چه په آسمان كښ ده په زمكه دِ هم
وِي ۱۱ ډوډئ دَ نن ورځي خمونږ نن مونږ ته راكړه ۱۲ او پوروُنه ۱۱-۱۲
خمونږ و مونږ ته را و بخښه لكه چه مونږ خپلو پوروړيو ته هم بخښلي دَي
۱۳ او ازمايښت ته مو مه بيايه بلكه له شرِيرَ مو خلاص كړه- ۱۳

۱۴ ۱۴ څکه چه که چرې تاسو دَ سړيو تقصيرونه ور وبخښئِ نو ستاسو آسماني
۱۵ پلار به تاسو وبخښي ۱۵ او که سړيو ته ئې تقصيرونه ور و نه بخښئِ نو
ستاسو پلار به هم تقصيرونه ستاسو در و نه بخښي
۱۶ ۱۶ او چه روژه لرئِ نو دَ رياکارانو په شان مه مراوِي کيږئِ څکه
چه دوي خپل مخونه دَ دې دَپارَ بدلوِي چه سړيو ته روژهِ تي ښکاره شي
۱۷ زه تاسو ته رښتيا وايم چه دوي خپل اجر موندلي دي ۱۷ مگر هر کله
۱۸ چه ته روژه لري نو خپل سر غوړ کړه او خپل مخ ووينځه ۱۸ تا چه
سړيو ته روژهِ تي ښکاره نه شې بلکه خپل پلار ته چه په پټه
کښ دې او پلار ستا چه په پټه کښ ليدونکې دې تا ته به بدله درکاندِ
۱۹ ۱۹ دَ خپل ځان دَپارَ خزانې په زمکې کښ مه ږدئِ چه هلته
۲۰ ئې چينجي او زنگ خراب کوِي او غله کنډر کوِي او په غلا ئې وړِي ۲۰ بلکه
دَ خپل ځان دَپارَ خزانې په آسمان کښ ږدئِ څکه چه هلته ئې چينجي
۲۱ او زنگ نه خرابوِي او هلته ته غله کنډر کوِي نه ئې په غلا وړِي ۲۱ څکه
۲۲ هلته چه ستاسو خزانه وِي هم هغه ځاي به ستاسو زړه وِي ۲۲ دَ جُثي
ډيوه سترگه ده نو که ستا سترگه صافه وِي نو ټول جُسه ستا به روښان
۲۳ وِي ۲۳ او که سترگه ستا بده شِي نو ټول جُسه ستا به تياره شِي
پس که چرې هغه نور چه په تا کښ ده تياره شِي نو څومره تياره
۲۴ به وِي ۲۴ هيڅوک دَ دوو خاوندانو خدمت کولي نه شِي څکه چه يا خو
به له يوه سره دُشمني وکړي او له بله سره مِينه او يا خو به له
يوه پيوست شِي او بل به سپک وگڼړِي تاسو دَ الله او دَ دولت خدمت
۲۵ کولي نه شئِ ۲۵ له دې سببَ زه تاسو ته وايم چه دَ خپل ځان دَپارَ
انديښنه مه کوئِ چه مونږ به څه خورو يا څه به څښو نه دَ خپلي جُثي
دَپارَ چه څه به واغندو کنږه ځان له خوراکَ او جُسه له جامي نه
۲۶ بهتر نه دَي څه؟ ۲۶ دَ هوا مرغانو ته وگورئِ چه دوي نه کرِي نه ريبِي
او نه ئې په انبارخانې کښ جمع کوِي او ستاسو آسماني پلار ئې پالِي

۲۷ او تاسو له هغو نه زياتِ غوره نه يئِ څه ؟ ۲۷ او له تاسو نه څوک توان
لرِي چه په انديښنو سره يوه هاته په خپل قد کښ زيات کانډِ ؟
۲۸ ۲۸ او ولي دَ جامو دَپارَ انديښني کويُ دَ بَېَنِي له سوسنو نه پند واخلئِ
۲۹ چه څنګه لوئيږِي نه مشقت کوِي نه وريشِي ۲۹ زه تاسو ته وايم چه
سُلَيمَان هم سره له خپلي ټولي دبدبي دَ يَوه دَ هغو په شان اغوستونکي
۳۰ نه وه ۳۰ پس هر کله چه الله دَ بَېَنِي په واښو باندِ چه نن شته او صبا
به په تَنَاره کښ واچولي شِي دا رنګه جامي اغوندوِي نو اي کم ايمانو
۳۱ تاسو ته به زياتي بهترِي درِوا نه غوندوِي څه ؟ ۳۱ دي دَپارَ انديښني
مه کويُ او مه وايُ چه څه به خورُو يا څه به څښُو يا څه به را
۳۲ باندِ ولچوُو ۳۲ څکه چه غير قومونه هم دَدي ټولو څيزونو طلب کوِي
څکه چه ستاسو آسماني پلار پوهيږي چه دَدي ټولو څيزونو محتاج يئِ
۳۳ ۳۳ مګر تاسو ورِاندِ دَ الله بادشاهِي او دَ صداقت طلب کويُ نو به دا
۳۴ ټول څيزونه تاسو زيات کړِي شِي ۳۴ پس دَ صبا انديښني مه کويُ
دي دَپارَ چه صبا به په خپله دَ خپلو څيزونو انديښنه وکړي دَ هري
ورځي بدِي دَ هغي دَپارَ بس ده ❊

# اوم باب

۲-۱ ۱ حکم مه کويُ چه په تاسو باندِ حکم و نه کړي شِي ۲ څکه چه په
هغه حُکم چه تاسي يُ وکړيُ په تاسو باندِ به هم حکم وکړي شِي او په
۳ هغه اوږي چه تاسو يُ پيمانه کويُ تاسو ته به پيمانه کړي شِي ۳ ته
ولي هغه خَسنڑِي ته ګوري چه ستا دَ ورور په سترګه کښ دَي او په
۴ هغه شَهتِير باندِ چه ستا په سترګه کښ دَي غور نه کوي ۴ يا څرنګ
به خپل ورور ته وايي چه پري م رِدده چه هغه خَسنڑِي چه ستا
په سترګه کښ دَي و يُ باسم او ګوره يو شَهتِير ستا په سترګه کښ دَي
۵ ۵ اي رِياکارَ اوّل له خپلي سترګي نه شَهتِير وباسه پس له هغه دَ هغه
خَسنڑِي په ويستلو چه ستا دَ ورور په سترګه کښ دَي به ښه نظر وکړي

۶ ۶ هغه چه مُقدَّس دِي سپو ته يُ مه ورکوئِ او خپلي مرغلري
دَ سَرکُوزو په مخ کښ مه غورزوئِ هسي نه چه تر خپلو پښو لاندِ
يُ هغه پايماله کړِي او بيا په تاسو باندِ در وګرزِي و مو شلوِي
۷ ۷ سوال کوئِ درکړي به شِي لټوئِ او بيا به مومئِ وټکوئِ
۸ تاسو ته به پرانتي شِي ۸ له دي سببَ چه هر څوک چه غواړي اخلِي
۹ او هر څوک چه لټوِي مومِي اوچه ټکوِي ورته به پرانتي شِي ۹ او له
تاسو نه کوم يَو سړي دَي چه که څوي يُ ډوډئِ ورنه وغواړي دَي به
۱۰ ۱۱ کاڼي وزکړِي ۱۰ يا که کبَ وغواړي مار به وله ورکړِي ۱۱ پس تاسي چه
بد يئِ که اولاد ته به ښو څيزونو ورکولو پوهيږئِ څو قدر زيات ستاسو پلار
چه په آسمانونو کښ دَي هغو ته چه له ده نه سوال کوِي ښه څيزونه
۱۲ به ورکړِي ۱۲ پس هر څه چه تاسو يُ غواړئِ چه خلق له تاسو سره
وکړِي هم هغه شان تاسو له دوي سره کوئِ څکه چه هم دا دي تورېت
او انبيا
۱۳ ۱۳ له تنګي دروازي ننوزئِ څکه چه هغه دروازه اُرته او هغه
لار پلنه ده چه هلاکت ته رسونکي دَه او ننوتونکي دَ هغي ډير دِي
۱۴ ۱۴ څکه چه تنګه دَه هغه دروازه او ګرانه ده هغه لار چه ژوندانه
ته رسونکي ده او مندونکي دَ دغي لږ دِي
۱۵ ۱۵ له دروغژنو نبيانو نه احتياط کوئِ چه تاسو ته دَ ګډو په
۱۶ لِباس کښ درڅي ليکن په باطِن کښ څيرونکي ليوکان دِي ۱۶ تاسو
به هغوي دَ هغو له ميوو نه و پيژنئِ څوک له اغزو نه انګور او له
۱۷ خَسکو نه اِنځر ټولولي شِي څه ؟ ۱۷ دا رنګه هره ښه ونه ښه ميوه
۱۸ نسِي او بده ونه بده ميوه نسِي ۱۸ ښه ونه بده ميوه نيولي نه شِي او
۱۹ نه بده ونه ښه ميوه نيولي شِي ۱۹ هره ونه چه ښه ميوه نه نسِي پريکړي
۲۰ به شِي او په اور کښ به وغورزولي شِي ۲۰ پس تاسو به هغوي دَ دوي
۲۱ له ميوو و پيژنئِ ۲۱ نه هر څوک چه ما ته خداوند خداوند وايئِ دَ آسمانونو

په بادشاهئ کښ به ننوزي بلکه هغه چه ځما دَ پلار چه په آسمانونو
کښ دي اراده په ځاي راوړي ٢٢ په هغې ورځي به ډېر ما ته ووايي چه ٢٢
اي خداوندَ اي خداوندَ موږ ستا په نامه باندِ نبوّت نه دي کړي څه؟
او ستا په نامه مو ديـوان يستلي نه دِي څه؟ او ستا په نامه مو ډېر
کرامتونه کـړي نـه دِي څه؟ ٢٣ هغه وقت به زه صاف ورته ٢٣
ته ووايم چه تاسو مِ هيڅري پيژندلي نه يئِ اي بدکارانو له ما لري شئِ
٢٤ پس هر څوک چه دا ځما خبري واوري او عمل وربانديِ وکانديِ نو ٢٤
دَ هغه هوښيار سړي سره به يئُ مشابه کړم چه کور خپل ئي په پرښه
باندِ بنا کړ ٢٥ او باران ووريده رودونه راغلل بادونه والوتل او په ٢٥
هغه کور ولګيدل او هغه پري نه ووت له دي سببَ چه په پرښه باندِ بنا
کړي شوي وه ٢٦ او هر څوک چه دا ځما خبره واوري او په عمل ئي را نه وړي ٢٦
نو دَ هغه نادان سړي سره به ئي مشابه کړم چه کور خپل ئي په
شګي باندِ بنا کړ باران ووريده سيلابونه راغلل بادونه والوتل او
په هغه کور ولګيدل او هغه پرېوت او پرېوتل ئي لوي وُو
٢٨ هر کله چه يسوع دا خبري تمامي کړي نو تولي دَده تعليم ته ٢٨
حيران شول ٢٩ څکه چه ده دَ کاتبانو په شان نه بلکه دَ صاحبِ اختيار ٢٩
په شان تعليم ور ته کاوه ÷

# اتم باب

١ هر کله چه دي له غره نه راکوزيده نو ډېر تولي په ده پسي روان ١
شول ٢ او کوړه چه يوَ کوړي راغي سجـــده ئي ور ته وکړه وئي ويل ٢
چه اي خداوندَ که چري ته غواړي نو پاکولي مِ شي-
٣ يسوع لاس خپل ور وغزاوه او مسه ئي کړ او وئي ويل چه زه غواړم ٣
پاک شه نو هغه دم ئي کوړ پاک شه ٤ او يسوع ور ته وِ وکوره ٤
هيڅوک مه خبروه مګر لاړ شه او خپل ځان کوهن ته ښکاره کړه
او هغه نذر چه موسیٰ فرمايلي دي ور ئي وړه چه په هغو شاهدي شي

۵ ۵ او هر کله چه په کفرنحوم کښ داخل شه نو يَو صوبدار ور ته
۶ راغي زارِي ئي ور ته وکړه او و ئي ويل ۶ چه اي خداوندَ ځما نوکر په کور
۷ کښ شَل پروت دي او ډير په عذاب دي ۷ ده ور ته وويل زه به درشم
۸ او هغه له به شفا ورکړم ۸ صوبدار ځواب ورکړ و ئي ويل چه اي
خداوندَ زه دَدي لايق نه يم چه ته ځما دَ چت لاندِ راشي بلکه ته
۹ تشه خبره وکړه نو ځما نوکر به شفا ومومي ۹ ځکه چه زه هم دَ
اختيار لاندِ سړي يم او سپاهيان دَ خپل لانـدِ لرم او چه دي
ته ووايم چه لاړ شه نو ځي او چه بل ته چه راشه نو راځي
۱۰ او چه خپل سړي ته چه دا وکړه نو ئي کوي ۱۰ يسوع چه دا واوريدل
تعجب ئي وکړ او هغو ته چه ورپسي وُو و ئي ويل چه زه تاسو ته رښتيا
۱۱ وايم چه داسي ايمان مِ په اسرائيل کښ هم ونه موند ۱۱ او زه تاسو
ته وايم چه ډير خلق به له مشرقونو نه او له مغربونو نه راشي له ابرهام
او له اِسحاق او له يَعقُوب سره به دَ آسمانونو په بادشاهئِ کښ کښيني
۱۲ ۱۲ مگر دَ بادشاهئِ ځامن به بهر په تياره کښ وغورزولي شي او هلته
۱۳ به ژړا او دَ غاښونو چيچل وِي ۱۳ نو يسوع صوبدار ته وويل لاړ شه او لکه
چه تا ايمان راوړ درسره دِ وشي او په هغه ساعت ئي نوکر شفا وموندله
۱۴ ۱۴ او هر کله چه يسوع دَ پطرس کور ته راغي و ئي ليدل چه دَ
۱۵ هغه خواښي پرته او تبي نيولي ده ۱۵ نو دَ هغي لاس ئي مسه کړ او تبي
۱۶ پرينښوده او پاځيده او خدمت ئي وکړ ۱۶ او هر کله چه نماښام شه نو
ډير ديـو نيولي ئي ور ته راوستل او په خبره سره ئي ارواحونه ويستل او ټولو
۱۷ رنځورانو ته ئي شفا ورکړه ۱۷ تا چه هغه دَ اَشعيا پيغمبر ويل پوره شي
چه هغه پخپله ځمونږ ستومانئِ واخستلي او رنځونه ئي ځمونږ پورته کړل
۱۸ ۱۸ او چه يسوع ډير ټولي له ځانَ چاپيره وليدل نو دَ پوري خوا دَ
۱۹ تللو حکم ئي ورکه ۱۹ او يو کاتب وله راغي او ورته و ئي ويل چه اي
۲۰ اُستاذَ هر لورِي ته چه ته ځي زه به درپسي ځم ۲۰ نو يسوع هغه ته ووِ

چه لُومړي غاروُنه لرِي او دَ هوا دَ مرغانو جالي شته مګر دَ ځوي دَ
انسان دوُمره ځاي نشته چه سر پرِ ولګوِي ٢١ او يَو بل له شاګردانو نه ٢١
ئ ورته ووِ چه اي خداوندَ ما له اِجازت راکړه چه زه ورښَي لاړ شم
او خپل پلار خښ کړم ٢٢ نو يسوع ورته ووِ چه ته په ما پسي راځه ٢٢
پرېږده چه مړي به خپل مړَي خښ کړي

٢٣ نو دي بېړيِ ته وخوت او شاګردان ئ ورپسي شول ٢٤ کوره چه ٢٣ ٢٤
داسي لوي طوفان په درياب کښ راغي چه بېړيِ به چپو کښ پټه شوله
او دي اوده وه ٢٥ نو ورغلل وِيښ ئ کړ و ئ ويل چه اي خداوندَ ٢٥
خلاص موکړه هلاکيږو ٢٦ نو ده ورته ووِ چه اي کم‌ايمانو ولي ٢٦
ويرېږيِ نو پورته شه بادونه او درياب ئ وترټل او قراره قراري
شوه ٢٧ او هغو سړو تعجب وکړ او و ئ وِ چه دا څرنګه سړَي دَي چه ٢٧
بادونه او درياب ئ هم منِي

٢٨ هر کله چه پوري په ملک دَ ګدرينو ورغي نو دوه چه ٢٨
ديو نيولي وُو ورسره مليا شول چه له قبرونو نه راووتل او ډير
هيبت‌ناک وُو تر دي حده چه هيڅوک به هغي لاري تيريدي نه شه -
٢٩ او کوره چه هغو چغي کړي و ئ ويل چه څموږ او ستا څه اي دَ ٢٩
الله ځويَ ته دلته راغلي چه له وقتَ مو وړاندِ په عذاب کوي څه ؟
٣٠ او له هغو لري يَوه کله دَ سرکوزو څريده ٣١ نو هغو ديوانو ده ٣٠ ٣١
ته زاريِ وکړِ و ئ ويل چه که موږ وباسي نو دَ سرکوزو کلي ته مو
واستوه ٣٢ نو ورته ئ ووِ چه لاړ شيِ نو هغه ووتل او په سرکوزو ٣٢
کښ ننوتل او کوره چه ټولي کلي له لوړي نه درياب ته دوکړ او په
اوبو کښ مړه شول ٣٣ نو څروڼکي ئ وتښتيدل ښهر ته لاړل او هرڅه ٣٣
ئ بيان کړل او هغه چه په ديو نيولو شويو واقع شوِي وه ٣٤ او کوره ٣٤
ټول ښهر دَ يسوع دَ ملاقات دَپارَ بهر راووت او چه و ئ ليد نو زاريِ ئ
ورته وکړِ چه دَ هغوي له سرحدَ بهر ووزِي ❖

# نهم باب

١ ٢ ١ او بېړۍ ته وختو پورې وت او خپل ښهر ته راغې ٢ او ګوره يَو شَل
چه په کټ باندې پروت وه دَه ته يې راوړ يسوع چه دَ هغو ايمان وليد
نو شَل ته يې ووېل چه اې ځوئ زړه اوسه ستا ګناهونه وبخښلې شول
٣ ٣ او ګوره چه څنو کاتبانو له خپلو ځانو سره ووېل چه دا سړئ کفر وائې
٤ ٤ او يسوع چه دَ هغو خيالونه معلوم کړل نو وې وېل چه ولې په خپلو
٥ زړونو کښې بد خيالونه کوئ ٥ چه کومه آسانه دَه وېل چه ستا ګناهونه
٦ وبخښلې شول يا دا وېل چه پورته شه او وګرزه ٦ مګر دې دَپارَ چه تاسو
وپوهېږئ چه دَ انسان ځوې په زمکه کښې دَ ګناهونو دَ بخښنې اختيار
لري (نو هغه شَل ته يې ووې) چه پورته شه خپل کټ واخله خپل کور ته
٧ ٨ ورځه ٧ او هغه پورته شه خپل کوَر ته لاړ شه ٨ چه ټولې دا وليدل نو
و وېرېدل او دَ الله تمجيد يې وکړ چه دَه دا رنګ اختيار سړو ته ورکړې دې
٩ ٩ او يسوع چه له هغه ځايَ تېر شه نو يَو سړي چه متي نوم يې
وه او دَ محصول په چوترې ناست وه وې ليد هغه ته يې ووې چه په ما پسې
راځه او هغه پورته شه په ده پسې روان شه
١٠ ١٠ او داسې وشوه چه دَې په کور کښې په ډوډۍ ناست وه نو ګوره
چه ډېر اجاره داران او ګنهګاران راغلل له يسوع او دَ ده له شاګردانو
١١ سره په ډوډې کښېناستل ١١ او چه فريسيانو دا وليدل نو دَ ده شاګردانو
ته يې ووېل چه ولې ستاسو اُستاذ له اجاره دارانو او له ګنهګارانو
١٢ سره ډوډۍ خوري ١٢ يسوع چه دا واورېدل و يې وېل چه روغ خلق محتاج
١٣ دَ طبيب نه دي بلکه رنځوران دي ١٣ مګر تاسو لاړ شئ دغه زده کړئ
چه داځه دَې زه رحم غواړم نه قرباني ځکه چه زه دَ صادقانو دَ بللو دَپارَ نه مګر
دَ ګنهګارانو دَپارَ راغلی يم
١٤ ١٤ هغه وقت دَ يوحنا شاګردان ور ته راغلل و يې وېل چه
مونږ او فريسيان ولې ډېرې روژې نيسو ليکن ستا شاګردان روژه نه

١٥ بنې ١٥ نو يسوع ورته وويل چه هلكان دَ واده دَ كور تر هغه چه
زومر ورسره وي وير كولي شي څه ؟ مگر هغه ورځي به راشي چه
زومر به له دوي نه ونيولي شي نو پس له هغه به دوي روژه نيسي
١٦ ١٦ او هيڅوک دَ شړلي خامتا ټكړه په زړي جامي نه لګوي ځكه چه
١٧ هغه چه لګولي ده له جامي نه اخلي او شليدل ئي بدتر شي ١٧ او نه
نوي شراب په زړو مشكونو كښ اچوي او كه هسي وي نو مشكونه
شليږي او شراب توئيږي او مشكونه خرابيږي بلكه نوي شراب
په نويو مشكونو كښ اچوي نو دواړه ساتلي كيږي
١٨ ١٨ چه ده له دوي سره لا دا خبري كولي كوره چه يو سردار ور
ته راغي سجده ئي ور ته وكړه و ئي ويل چه اوس مِ لور مړه شوه مگر
١٩ ته راشه لاس خپل ورباندِ كيږده نو دا به ژوندئ شي ١٩ نو يسوع پاڅيده
٢٠ له خپلو شاګردانو سره ورپسي شه ٢٠ او كوره يوه ښځه چه له دوولسو
كالو ئي وينې جاري وي له ورستو راغله او دَده دَ جامي لمني له ئي لاس
٢١ وروړ ٢١ ځكه چه په خپل ځان كښ ئي وويل چه كه زه تش دَده جامي
٢٢ له لاس وروړم نو خلاصه به شم ٢٢ نو يسوع مخ وروګرزاوه هغه
ئي وليده ور ته و ئي ويل چه اي لوري خاطر جمع لره چه خپل ايمان
٢٣ ته خلاصه كړي نو هغه ښځه په هغه ساعت كښ خلاصه شوه ٢٣ او
چه يسوع دَ سردار كره راغي شپيلي غږوُنكي او دَ زوږ كونكو ټولي ئي وليد
نو و ئي ويل چه لري شئ جينئ مړه نه ده ليكن اوده دَه او هغو په ده
٢٥ پوري وخندل ٢٥ چه هغه ټولي ئي بهر ويستل نو دي ننوت لاس دَ
٢٦ هغي ئي ونيو او هغه جينئ پورته شوله ٢٦ او شهرت دَده په هغه
ټول ملك كښ خور شه
٢٧ ٢٧ چه يسوع له هغه ځاي تير شه نو دوه ړانده ورپسي تلل
٢٨ او په نارو سره ئي ويل چه اي دَ داؤد ځويه په مونږ باندِ رحم وكړه ٢٨ او
هر كله چه كور ته راغي نو هغه دواړه ړانده ور ته راغلل يسوع ور ته

ووِ چه ستاسو په دي ايمان شته چه زه دا کار کولي شم دوي ور ته ووِ
۲۹ هو اي خداوندَ ۲۹ نو دَ هغو سترګي ئي مسه کړي او وئي ويل چه له تاسو
۳۰ سره دِ ستاسو دَ ايمان په شان وشِي ۳۰ نو دَ هغو سترګي وغړيدي او
۳۱ يسوع په دوي باندِ تاکيد وکړ و ئي ويل ګوره چه څوک خبر نه شِي ۳۱ مګر
چه دوي بهر لاړل نو په ټول ملک کښں ئي شهرت دَده خور کړ
۳۲ ۳۲ او هرګاه چه دوي بهر لاړل نو ګوره چه يو ګُنګ ديـــو نيولي
۳۳ ئي ور ته راووست ۳۳ او چه ديـــو تِر نه ويستلي شه نو ګُنګ ګويـا
شه او ټولي تعجب وکړ و ئي ويل چه هيڅري داسي په اسرائيل کښں ليدلي
۳۴ شوي نه وه ۳۴ مګر فريسيانو وويل چه هغه دَ ديـــوان دَ سردارِ په
مدد سره ديـــوان وباسِي
۳۵ ۳۵ او يسوع په ټولو ښهرونو او کليو کښں وګرزيده او دَ هغو په
جماعتونو کښں ئي تعليم ورکاوه او دَ بادشاهئِ دَ زيري وعظئِکاوه او هر
۳۶ رنځ او هري ضعيفئِ ته ئي شفا ورکوله ۳۶ او هرګاه چه ټولي ئي وليدل
نو زړه سوي ئي پرِ وکړ ځکه چه دَ ګډو په شان چه شپانه نه لرِي
۳۷ پريشان او پراګنده وُو ۳۷ بيا ده خپلو شاګردانو ته وويل چه فصل
خو ډير دي مګر مزدوران لږ دِي پس دَ فصل دَ خاوند مِنت کوئِ
چه مزدوران خپل فصل ته واستوِي ❊

# لسم باب

۱ ۱ او خپل دولس شاګردان ئي وبلل او په ناپاکو روحونو باندِ ئي اختيار ورکړ
تا چه دوي هغه وباسِي او هر قسم رنځ او هر قسم ضعيفي جوړوِي
۲ ۲ او دَ دولسو رسولانو نومونه دا دِي ورنبي شَمعُون چه پَطرَس
ويلي شِي او دَ هغه ورور اَندرِياس او يَعقُوب زوي دَ زبدي او ورور دَده
۳ يُوحنّا او فيلِپُّوس او بَرتُولما ۳ او تهُوما او مَتِي اجاره دار او يَعقُوب څوي
۴ دَ حَلفِي او تدِّي ۴ شَمعُون کنعانِي او يَهُودا اِسقَروطِي چه دي ئي وسپاره
۵ ۵ دا دولس يسوع واستول ور ته وئي فرمايل و ئي ويل چه

دَ غیر قومونو په لاري مه ځيِ او په هیڅ ښهر دَ سَامریانو کښں مه
٦ ننوزيِ ٦ بلکه خاص دَ اسرائیلو دَ کور ورکو شوِیو گډو ته ورشيِ
٧ ٧ او په تلو تلو کښں وعظ کويِ او وايِ چه دَ آسمانونو بادشِاهِي نژدي دَه
٨ ٨ رنځوران جوړويِ مړِي ژوندِي کويِ کوړیان پاکويِ دیــوان وباسي
٩ تاسو ویړیا موندلِي دِي ویړیا يِ ورکويِ ٩ په خپلو کمربندونو کښں
١٠ نه سره زر او نه سپین زر او نه تانبـه اخليِ ١٠ او دَ لاري دَپـارَ نه
توښــه‌دان او نه دوه قمیصونه او نه څپلي او نه اَمسَا اخليِ ځکه چه
١١ کارکونکيَ دَ خپل خوراک لایق دَي ١١ په هر ښهر یا کلِي کښں چه ننوزيِ
نو پوښتنه وکړيِ چه دلته‌کښں څوک لایق دِي او دَ وتلو تر وقتَ پوري هلته
١٢ ١٣ اوسيِ ١٢ او کور ته چه ورننوزيِ سلام پرِ واچويِ ١٣ که چرِ کور لایق
وِي نو سلام ستاسو دِ هغه ته ورسيِ او که چرِي لایق نه وِي نو
١٤ ستاسو سلام دِ په تاسو را وگرزِي ١٤ او هغه څوک چه تاسو قبول نه کړِي
اوخبرِي مو وانه ورِي نو چه له هغه کورَ یا له هغه ښهرَ بهر ووزيِ
١٥ نو گرْد دَ پښو خپلو وځنډيِ ١٥ زه تاسو ته رښتیا وایم چه دَ
عدالت پهِ ورځ به حال دَ زمکي دَ ســدوم او دَ عمورا دَ هغه ښهر
له حالَ زیات آسان وِي

١٦ ١٦ گوريِ زه تاسو دَ گډو په شان دَ لیوگانو په مینځ کښں استوم
١٧ پس دَ مارانو په شان هوښیار او دَ کوترو په شان ساده اوسيِ ١٧ او له
سـړیو احتیاط کويِ ځکه چه هغه به تاسو جرگو ته وسپارِي او پـه
١٨ خپلو جماعتونو کښں به مو په کروړو ووهِي ١٨ او تاسو به ځما په سبَب
دَ حاکمانو او دَ بادشاهانو په حضُور کښں بوتلي شيِ چه په دوي او په غیر
١٩ قومونو باندِ گواهي شِي ١٩ لیکن هرگاه چه تاسو وسپارِي نو په هغه
وقت کښں اندیښنه مه کويِ چه مونږ څنگه یا څه ووایُو ځکه چه
٢٠ هرڅه ویل چه وِي په هغه ساعت به تاسو ته درکړِي شِي ٢٠ ځکه چه
ویونکِي تاسو نه يِ بلکه ستاسو دَ پلار روح چه په تاسو کښں خبري

۲۱ کِوي ۲۱ څکه چه وروړ به وروړ او پلار به خوي مرګ ته وسپاري او
۲۲ خامن به دَ خپلي مور او پلار په خلاف ودرېږي او مړه به ئې کړي ۲۲ او
خما دَ نوم په سبب له ټولو خلقو نه کِينه کړي شي مګر هغه چه
۲۳ تر آخرَ پورې ئې وزغمي هم هغه به خلاص شي ۲۳ او چه تاسو له يَوه
ښهر نه وشړي نو بل ښهر ته وتښتئ چه زه تاسو ته رښتيا وايم
چه تاسو به ټول ښهرونو دَ اسرائيل تمام نه کړئ تر هغه پوري
چه ځوي دَ انسان را نه شي
۲۴ ۲۵ ۲۴ شاګرد له اُستاذَ لوي نه دي نه غلام له خپلَ خاوندَ ۲۵ دَ
شاګرد دَپارَ دا بس دي چه دَ خپل اُستاذ په شان او غُلام دَ خپل خاوند
په شان شي او هر کله چه هغو دَ کور څښتن بعلزبول وباله نو څومره
۲۶ زيات به دَ هغي کور خلقو ته ووائي ۲۶ پس له هغو مه ويرېږئ له دي
سبَب چه هيڅ پټ نشته چه ښکاره به نه کړي شئ او نه هيڅ پټهم چه معلوم
۲۷ به نه کړي شي ۲۷ هغه څه چه زه ئې تاسو ته په تياري کښ وايم تاسو
ئې په رڼا کښ ووائئ او هغه چه په غوږو ئې واورئ په کوټو ئې وعظ
۲۸ کوئ ۲۸ او له قتل کونکو دَ جُسّي چه په قتلولو دَ څان قادر نه دي مه
ويرېږئ بلکه له هغه زيات ويرېږئ چه څان او جُسّي دواړه په جهنّم کښ
۲۹ هلاکولي شي ۲۹ دوه چڼچڼي په يَوه پيسه نه خرڅيږي څه ؟ او له
هغو نه به يَوه هم بي ستاسو دَ پلار (له مرضي نه) په زمکه نه پريوزي
۳۰ ۳۱ ۳۰ بلکه ستاسو دَ سر ويښته هم ټول شميرلي شوي دي ۳۱ پس مه ويرېږئ
۳۲ تاسو له ډيرو چڼچڼو نه غوره يئ ۳۲ نو هر څوک چه دَ خلقو دَ وړاندِ
اقرار په ما وکړي زه به هم دَ خپل پلار دَ وړاندِ چه په آسمانونو کښ دئ
۳۳ په هغه اقرار وکړم ۳۳ او هغه څوک چه دَ خلقو دَ وړاندِ خما انکار وکړي
زه به هم دَ خپل پلار دَ وړاندِ چه په آسمانونو کښ دي دَ هغه انکار وکړم
۳۴ ۳۴ دا مه ګنړئ چه زه راغلي يم چه په زمکه صُلحه واچوم دَ صُلحي
کولو دَپارَ نه بلکه دَ توري اچولو دَپارَ راغلي يم څکه چه زه سړي له خپلَ

پلارَ او لُور له خپلي موره او نګور له خپلي خواښيَ نه دَ جدا کولو دَپارَ راغلي
یم ۳۶ او دَ سړي دُښمنان به دَ هغه دَ کور خلق ښي ۳۷ هغه څوک چه ۳۶ ۳۷
په پلار یا په مور باندِ له ما نه زیاته مِینه کوِي څما لایق نه دي او هغه
چه په څوي یا په لُور له ما نه زیاته مِینه کوِي لایق څما نه دي ۳۸ او ۳۸
هغه څوک چه خپل صَلِیب نه اخلِي او په ما پسي نه راځِي لایق څما
نه دي ۳۹ هغه څوک چه خپل ځان مومِي ورک به يُي کړِي او هغه ۳۹
چه څما دَپارَ خپل ځان ورکوِي بیا به يُي مومِي
۴۰ هغه چه تاسو قبلوِي ما قبلوِي او هغه چه ما قبلوِي څما ۴۰
راستونکيَ قبلوِي ۴۱ هغه څوک چه دَ نبِي په نُوم نبِي قبول کوِي دَ نبِي اجر به ۴۱
بیامومِي ۴۲ او هغه چه دَ صادق په نامه صادق قبول کړِي دَ صادق ۴۲
اجر به بیامومِي ۴۳ او هغه چه له دي وړوکیو نه په یوه خاص دَ شاګرد ۴۳
په نامه یَوه پیاله یَخِي اوبه څښِي زه تاسو ته رښتیا وایم چه هغه
به خپل اجر ورک نه کړِي +

# یولسم باب

۱ او داسي وشول چه هرکله چه یسوع خپلو دولسو شاګردانو ته امر ۱
کول پوره کړل نو له هغه ځایَ لاړ تاچه دَ دوي په ښهرونو
کښِ تعلیم ورکړِي او وعظ وکړِي
۲ او چه یُوحَنّا په قیدخانيِ کښ دَ مسیح کارونه واورېدل له ۲
خپلو شاګردانو يُي دوه تنه ورواستول او ورته وئي ویل ۳ چه هغه ۳
راتلونکيَ ته يي که مونږ دَ بل انتظار کوو ۴ یسوع په ځواب کښ ور ته ۴
وویل چه لاړ شئ او یُوحَنّا له هغه نه چه تاسو يُي اورِئ او وینِئ يُي خبر
کړِئ ۵ ړانده وینِي او ګډان ګرزي او کوړیان پاکیږِي او کاڼه اورِي او مړِي ۵
پاخیږِي او خوارانو ته انجیل اورولي شِي ۶ او مبارک هغه دي چه ۶
په ما کښ ټیندک و نه خورِي ۷ چه هغه روان شول یسوع دَ یُوحَنّا په ۷
باب کښ ښولیوته په ویلو سر شه چه تاسو دَ څه کتلو دَپارَ صحرا ته تللي

۸ وئِ یَوي دُرمي؟ ته چه له بادَ خوځیدي شي څه؟ ۸ بیا تاسو دَ څه کتلو دَ پارَه
تللي وئِ یَوه سړي ته چه نرئ جامي ئې اغوستي وِي څه؟ گورئ هغه
۹ چه نرئ جـــامي اغوندِي دَ بادشاهانو په محلونو کښ وِي ۹ ولي
بهر تللي وئِ دَ پیغمبر لیدلو له څه؟ هو زه تاسو ته وایم او له پیغمبر
۱۰ نه ډیر زیات ۱۰ دا هغه دي چه دَده په باب کښ لیکلي شوي دِي
چه گوره زه خپل رسول ستا دَ مخ دَ وړاندِ استوم چه ستا لاري به
۱۱ ستا دَ وړاندِ تیاري کړي ۱۱ زه تاسو ته رښتیا وایم چه له اولادَ دَ ښځو
هیڅوک زیات لوي له یُوحَنّا بپتسما ورکونکي نه پاڅیدلي نه دي مگر
هغه څوک چه په بادشاهئ دَ آسمانونو کښ وړوکي دَئ له ده نه لوي
۱۲ دَئ ۱۲ دَ یُوحَنّا بپتسما ورکونکي له ورځو نه تراوسَ پوري دَ آسمانونو
۱۳ بادشاهي مجبوره کیږِي او جبّاران ئې په زور شوکوِي ۱۳ ځکه چه ټولو
۱۴ نبیانو او توریت تر یُوحَنّا پوري نبوّت وکړ ۱۴ او که ئې قبلول غواړئ نو
۱۵ دا اِلیاس دَئ چه را تلونکي دي ۱۵ هغه چه اوریدونکي غوږ لرِي وادِوري
۱۶ ۱۶ لیکن دَدي پیـــرئ په څه شي مشابه کړم دَ هغو هلکانو په مثال
دِي چه په بازارونو کښ ناست دِي چه خپلو یارانو ته ناري وهِي او ورته
۱۷ وایِي ۱۷ چه مونږ تاسو ته شپیلئ وغږوله او تاسو گډ نه شوئ او مونږ
۱۸ تـاسو ته وِیر وکړ او تاسو سیني و نه وهلي ۱۸ ځکه چه یُوحَنّا چه نه خوړِي
۱۹ او نه ښبني راغي او دوي وایِي چه دیو لرِي ۱۹ دَ انسان ځوي خوړونکئ او
څښونکئ راغي او خلق وایِي گوره چه را دي گیډه ور او شراب خور دَ
اِجاره دارانو او دَ گنهگارانو دوست او حکمت له خپلو عملونو نه تصدیق
کیږِي
۲۰ ۲۰ نو دَ هغو ښهرونو په ملامت کولو سر شه چه ډیري معجزي دَده
۲۱ په کښ شـوي وي ځکه چه هغو توبه و نه کړه ۲۱ چه هئ په تا اي
قُرازِینه هئ په تا اي بَیْتِ صَیدا ځکه چه که چري هغه معجزي چه په
تاسو کښ کړي شوي دِي په صُور او په صَیْدا کښ کړي شوي وئ نو پخوا له

۲۲ دي نه به ئي په شَرَيْرِ او په ايرو کښې توبه کړي وه ۲۲ پس زه تاسو ته وايم چه
دَ عدالت په ورځ کښې به حال دَ صُور او دَ صَيدا ستاسو له حالَ زيات آسان
۲۳ وِي ۲۳ او اي کفَرنحُومَ ته تر آسمانَ پورې هسک به کړي شي څه ؟ په دوزخ
کښې به کوز لاړ شي ځکه چه که چرې هغه معجزې چه په تا کښې و
۲۴ شوي په سَدُوم کښې شوي وي نو ترنن ورځي پورې به پاتې وه ۲۴ نو زه
تاسي ته وايم چه دَ عدالت په ورځ به حال دَ زمکې دَ سَدُوم ستاسو
له حالَ زيات آسان وِي

۲۵ ۲۵ هغه وقت يسوع بيا په ځواب کښې وويل چه اي پلارَ دَ
آسمانونو او دَ زمکې خداوندَ زه ستا شکر کوم ځکه چه تا دا څيزونه له
حکيمانو او له هوښيارانو نه پټ کړي دِي او په تنکو هلکانو دِ ظاهر
۲۶ ۲۷ کړي دِي ۲۶ هو اي پلارَ ځکه چه دا هسې ستا دَ وړاندِ خوښه شوه ۲۷ هرڅه
خما له پلارَ ما ته سپارلي شوي دِي او هيڅوک ځوي نه پيژني بې له پلارَ او نه
څوک پلار پيژني بې له ځويَ او هغه چه ځوي پرِ مکشوفول
۲۸ غواړِي ۲۸ اي پتولو مشقت کونکو او په درانه بار ليبيليو ما ته راشئِ او زه به تاسو له
۲۹ ارام درکړم ۲۹ جغ خما په خپل ځان واخلئِ او له ما نه زده کړئِ ځکه
چه زه حليم او په زړه کښې غريب يم او تاسو به په خپلو ځانونو کښې
۳۰ آرام بيامومئِ ۳۰ ځکه چه جغ خما نرم او بار خما سپک دي ✣

## دولسم باب

۱ ۱ هغه وقت يسوع دَ سَبَت په ورځي کښې دَ فصلونو په مينځ کښې
تيريده او شاگردان ئي وږي وُو او دَ وږيو په شوکولو او خوړلو باندِ
۲ لگيا شول ۲ چه فريسيانو وليدل نو ورته وئي ويل گوره چه ستا
۳ شاگردان هغه کار کوي چه دَ هغه کول په سَبَت روا نه دِي ۳ هغو
ته ئي وويل چه تاسو هغه لوستي نه دِي چه داؤد وکړل چه دي وږي
۴ شه او هغوي چه ورسره وُو ۴ چه په څه شان دَ الله په کور کښې
ننوتل او دَ نذر ډوډئِ ئي وخوړه چه دَ هغو خوړل نه ده ته روا وُو

۵ او نه هغو ته چه ورسره وُو مګر تش کوهِنانو لره ۵ یا تاسو په توریت
کښ نه دِي لوستلِي چه په سَبَت کښ کوهِنیان په هیکل کښ سَبت
۶ پلیت کوِي او بي قصُورهِ دِي ۶ مګر زه تاسو ته وایم چه دلته یو شته
۷ چه له هیکلَ هُم لوي دي ۷ مګر که تاسو پوهیدلي چه دا څه دِي چه زه
۸ قربانِي نه بلکه رحم غوارِم نو به مو په بي قصُورو حکم نه کاوه ۸ ځکه چه دَ
انسان ځوي دَ سَبَت دَ ورځي هم خاوند دَي
۹ ۹ او چه له هغه ځايَ تیر شه نو دَ هغو جماعت ته ورغي -
۱۰ ۱۰ او ګوره یَو سړي وه چه لاس ئي وچ وه او دوي ور نه پوښتنه وکړه
او وئي ویل چه دَ سَبَت په ورځ شفا ورکول روا دِي که نه تا چه
۱۱ دعوىٰ پرِ وکړي ۱۱ ده هغو ته وویل چه له تاسو نه کوم یَو سړي دي چه
یو ګډوري لرِي او که چرِي هغه دَ سَبَت په ورځ کښ په ړوغل کښ
۱۲ پریوزي نو به ئي نه نیسِي او وبه ئي نه پاځوِي څه ؟ ۱۲ پس سړي له ګډورِي
۱۳ نه څومره غوره دي دِپارَ په سَبَت کښ نیکي کول روا دِي ۱۳ نو
هغه سړِي ته ئي وویل چه خپل لاس وغزوه او هغه وغزاوه او
۱۴ دَ بل لاس په شان ئي روغ شه ۱۴ نو فریسیان بهر ووتل او دَده په خلاف
۱۵ ئي مصلحت وکړه چه دي به څنګه هلاک کړو ۱۵ مګر یسوع په دي پوه شه
او له هغه ځاي نه روان شه او ډیر خلق ورپسي شول نولو ته ئي شفا
۱۶ ۱۷ وبخښله ۱۶ او هغو ته ئي تاکید وکړ چه مه ئي مشهورويِ ۱۷ ولي چه هغه
۱۸ قول چه اشعیا نبي ویلي وُو کامل شِي ۱۸ چه
ګوره څما خادم چه ما غوره کړ
محبوب څما چه ځان مِ پرِ بنه خوښ دي
زه به خپل روح په ده کیږدم
او دي به غیر قومونو ته دَ عدالت خبري وکړِي
۱۹ ۱۹ هغه به جنګ ونه کړي او نه به شور وکړِي
هیڅوک بد په بازارونو کښِ آواز دده وانه ورِي

٢٠ چاودي شوي نَل به مات نه کړي ٢٠
او لوګي کړي شوِي سنړ به مړه نه کړي
تر هغه پوري چه عدالت برِي ته و نه رَسوي
٢١ او دَده په نامه به غير قومونه اميد وکړِي ٢١
٢٢ هغه وقت ئي يَو ديــو نيولي شوي ړوند اوګُنګ ده ته راوست اوهغه ٢٢
٢٣ ته ئي شفا ورکړه تر دي حده چه هغه ګُنګ ويونکَي او ليدونکَي شه ٢٣ او ٢٣
٢٤ واړه تولي حيران شول و ئي ويل چه دا دَ داؤد ځوي نه دي څه؟ ٢٤ چه ٢٤
فريسيّانو واوريدل و ئي ويل چه دي ديـوان نه وباسِي مګر په مدد دَ
٢٥ بعل‌زبول سردار دَ ديـوانو سره ٢٥ چه دَ هغو په خيالونو پوه شه نو هغوي ٢٥
ته ئي وويل چه هره بادشاهي چه په خپل خلاف وويشلي شي هغه به
ورانه شي او هر ښهر او هر کور چه په خپل خلاف وويشلي شي ولاړ
٢٦ به پاتي نه شي ٢٦ او که چري شيطان شيطان وباسِي نو هغه په خپل کور ٢٦
٢٧ کښ وويشلي شه بيا په څنګه بادشاهي دَ هغه ودريږي ٢٧ او که زه دَ ٢٧
بعل‌زبول په مدد ديـوان وباسم نو ستاسو ځامن ئي دَ چا په مدد وباسِي
٢٨ له دي سببَ به هم هغه ستاسو مُنصِفان شي ٢٨ ليکن که زه دَ الله دَ ٢٨
روح په مدد ديـوان وباسم نو بادشاهي دَ الله په تاسو رسـيدلي ده-
٢٩ ٢٩ يا څنګه څوک توانيږي چه دَ زوراور کور ته ورننوزي او اسباب دَ ٢٩
هغه لوټ کړي مګر هاله چه ورنبي هغه زورَور و تړي بيا به دَ هغه
٣٠ کور لُوټ کړي ٣٠ هغه څوک چه څما سره نه دي څما په مخالف دي او هغه ٣٠
٣١ چه له ما سره نه جمعَ کوِي تار پتار کوِي ئي ٣١ څکه زه تاسي ته وايم چه ٣١
تولي ګناه او کفر به سړيو ته معاف کړي شي مګر کفر دَ رُوحُ القُدُس به
٣٢ معاف نه کړي شي ٣٢ او هغه څوک چه دَ انسان دَ ځوي په خلاف څه ٣٢
ووايِي هغه به ور معاف کړي شِي مګر هغه څوک چه دَ رُوحُ القُدُس په
خلاف څه ووايِي ور معاف به نه کړي شي نه په دي جهان کښ نه
٣٣ راتلونکي کښ ٣٣ يا ځونه ښه کړئِ او ميوه ئي ښه يا ونه بــده کړئِ ٣٣

او ميوه يُ بـدو ښکه چه ونه دَ هغې له ميوې نه پېژاندلې کيږي -
۳۴ ۳۴ اي دَ مارانو ځاسنو تاسو چه بد يئ نو څنګه ښې خبرې کولې شئ ښکه
۳۵ چه ژبه دَ زړه له زياتوالي نه خبرې کوي ۳۵ ښه سړي له خپلې ښې خزانې
نه ښه څيزونه وباسي او بد سړي له خپلې بدې خزانې نه بد څيزونه وباسي
۳۶ ۳۶ مګر زه تاسو ته وايم چه هره باطله خبره چه سړي يُ ووايي دَ عدالت
۳۷ په ورځ به دَ هغې حساب ورکړي ۳۷ ښکه چه ته به له خپلو خبرونه
صادق وشمېرلې شې او هم له خپلو خبرونه به ګرم وګڼلې شې
۳۸ ۳۸ هغه وقت يَو څو تنو له کاتبانو او له فريسيّانو هغه له
ځواب ورکړ و يُ ويل چه اي اُستاذَه مونږ غواړو چه له تا نه يَوه
۳۹ نښه ووينو ۳۹ ده هغو ته ځواب ورکړ و يُ ويل چه بده او زناکاره پيړۍ
نښه غواړي مګر بې له نښې دَ يُونَس نبي نه نښه به ودوي ته ور نه کړې
۴۰ شي ۴۰ ښکه لکه چه يُونَس درې شپې او ورځې دَ نهنګ په ګېډه کښ وه
هم هسې به دَ انسان ځوي درې شپې ورځې دَ زمکې په مېنځ کښ وي -
۴۱ ۴۱ دَ نينوې سړي به دَ عدالت په ورځ له دې پيړۍ سره ودريږي او هغه به
پړه کړي ښکه چه هغو دَ يُونَس په وعظ سره توبه وکړه او ګورئ چه دلته
۴۲ له يُونَس يو لوي دې ۴۲ دَ جنُوب ملکه به دَ عدالت په ورځ له دې پيړۍ
سره پورته شي او هغه به پړه کړي ښکه چه هغې دَ سُلَيمان دَ حکمت اوريدلو
دَپارَ دَ زمکې له حده راغله او ګورئ چه دلته له سُلَيمانَ يَو لوي دې
۴۳ ۴۳ هرګاه چه ناپاک رُوح له سړي نه ووت نو دَ ارام لټولو دَپارَ په وچو
۴۴ ځايونو کښ تيريږي او نه يُ مومي ۴۴ نو وايي چه خپل کورته چه زه ور
ـــنه بهر وتلي يم ورو به ګرزم او چه راشي نو هغه خالي او جارو
۴۵ کړي او ښايښته بيا مومي ۴۵ بيا لاړ شي او نور اووه ارواحونه چه له ده نه
زيات بد وي له ځانَ سره يُ راولي او په هغه ځاي کښ ننوزي استوګنه
کوي او دَ هغه سړي ورستني حالونه به له اوّلو حالونه زيات بد شي هم به دې
شان به له دې بدې پيړۍ سره وشي.

۴۶ اوچه له ټوليو سره ئې لا دا خبري کولي ګوره چه دَده مور او ۴۶
ورونړه بهر ولاړ وُو غوښتل ئې چه له ده سره خبري وکړي ۴۷ چا ورته ۴۷
ووِ چه ګوره مور او ورونړه دِ بهر ولاړ دِي غواړي چه خبري درسره
وکړي ۴۸ مګر ده هغه ويونکي ته ځواب ورکه و ئې ويل چه مور څما څوک ۴۸
او ورونړه مِ څوک دِي ۴۹ نو خپل لاس ئې خپلو شاګردانو ته اوږد کړ وئې ۴۹
ويل چه ګورئِ څما مور او څما ورونړه ۵۰ ځکه چه هرڅوک چه څما دَ پلار ۵۰
په ارادي چه پاس په آسمانونو کښ دي عمل کوي هم هغه څما ورور او
خور او مور دِي ÷

# ديارلسم باب

۱ هغه ورځ يسوع له کورَ بهر ووت او دَ درياب په غاړه کښيناست - ۱
۲ او ډير ټولِي ورباندِ جمعَ شول تر دي چه بېړئِ ته وختو کښيناست ۲
او واړه ټولِي په غاړي باندِ ودريدل ۳ او ده هغو ته ډيري خبري په متلونو ۳
سره وکړي و ئې ويل چه ګورئِ يو کرونکي دَ کرولو دَپارَ ووت ۴ او په کرولو ۴
کښ څه تړِ نه په لاري کښ پريوت او مرغان راغلل هغه ئې ونغړِل
۵ او څه په کاڼريزه زمکه پريوت اوچه هلته ډيري خاوري نه وي نو ۵
زر و ټوکيدل ځکه چه زمکي ژور والي نه لاره ۶ اوچه نمر وخوت وسه ۶
او چه ولي ئې نه لرِلي وچ شه ۷ او څه په اغزو کښ پريوت او اغزِي لوی ۷
شول نو هغه ئې خپه کړل ۸ او څه په ښي زمکي کښ پريوت او بَر ئې ۸
راوړ څنو يَو په سلَ څنو يَو په شپيته څنو يَو په ديرش ۹ هغه چه ۹
غوږونه لرِي وا دِ وري
۱۰ او شاګردان ئې راغلل ده ته ئې وويل چه ځله دوي ته په ۱۰
متالونو سره خبري کوي ۱۱ ده په ځواب کښ ور ته وويل تاسوته دَ آسمانونو ۱۱
دَ بادشاهئِ دَ رازونو پوهه درکړي شويَ ده مګر هغوته ورکړي شوي نه ده
۱۲ ځکه چه هرڅوک چه لرِي هغه ته به ورکړه شِي او زيات به ورکړي شِي او ۱۲
هرڅوک چه نه لرِي له هغه نه به هغه هم چه لرِي ئې واخستلي شِي-

۱۳ ۱۳ له دي سببَ زه له دوي سره په مثالونو کښې خبري کوم چه ليدونکي
۱۴ دِي او نه وِيني او اوريدونکي دِي او نه اورِي او نه پوهيږي ۱۴ او دَ دوي
په حق کښې دَ اَشعِيا نبُوّت پوره کيږي چه ويل ئي

تاسو به په اوريدلو سره اوريُ مګر هيڅ به نه پوهيږيُ
او په ليدلو سره به کوريُ مګر هيڅ به نه وينئِ
۱۵ ۱۵ څکه چه زړه دَ دي امت غټ شه
او غوږونه ئي درانه شول
او خپلي سترګي ئي پټي کړي
هسي نه چه په خپلو سترګو ووِيني
او په غوږو واورِي او په زړه وپوهيږي
او را وګرزي او زه هغو ته شفا ورکړم

۱۶ ۱۶ مګر ستاسي سترګي مبارکي دِي څکه چه وِيني او غوږونه ستاسي څکه
۱۷ چه اورِي ۱۷ څکه چه زه په ريښتيا سره تاسي ته وايم چه ډيرو نبيانو
او صادقانو دَ هغو څيزونو دَ ليدلو آرزو ئي لرله چه تاسو ئي وِينئِ ليکن
و ئي نه ليدل او دَ هغو څيزونو دَ اوريدلو چه تاسي ئي اوريُ او وا ئي
۱۸ ۱۹ نه وريدل ۱۸ نو دَ کرونکي مثال واوريُ ۱۹ هرکاه چه څوک دَ بادشاهيُ
کلام واورِي او نه پوهيږي هغه شرير راشِي او هر څه چه دَ هغه په
زړه کښې کرلي شوِي دِي و ئي شوکوِي دا هغه دي چه په لار کښې کرلي
۲۰ شوِي دِي ۲۰ او هغه په کاڼيزه زمکه کښې کرلي شوي دي هغه دي چه کلام
۲۱ اورِي او ژر ئي په خوښئِ سره قبول کويُ ۲۱ مګر په خپله ولي نه لِري بلکه
دَ څو سودي دِي او چه دَ کلام په سببَ څه سختِي يا تنکسيا ورشي نو زر
۲۲ تيندک وخورِي ۲۲ هغه چه په اغزو کښې وکاره شه دا دي چه کلام
واورِي مګر وسواس دَ دُنيا او فريب دَ دولت هغه کلام خپه کړي او
۲۳ بي بره شِي ۲۳ مګر هغه چه په ښي زمکي کښې وکاره شه دا دي چه کلام
واورِي او پوه شِي او بر راورِي څڼ يَو په سل څڼ يَو په شپيته څڼ يَو

په دیرش
۲۴ ۲۴ بیا ئي یَو بل مثال هم ور ته راوړ ویل ئي چه دَ آسمانونو
بادشاهي دَ هغه سړي په شان دَه چه ښه تخم ئي په خپل پټي کښ
۲۵ وکاره ۲۵ لیکن چه سړي اوده شول دُښمن ئي راغي او دَ هغه په غنمو
۲۶ کښ ئي جَونډر وکاره او لاړ ۲۶ نو چه فصل وټوکیده او بَر ئي ونیو
۲۷ پس له هغه جَونډر هم ښکاره شه ۲۷ نو دَ کور دَ خاوند غُلامان ور ته
راغلل او وئي ویل چه اي خاوندَ تا په خپل پټي کښ ښه تخم کرلي
۲۸ نه دي څه ؟ دا جَونډر له کومه لري ؟ ۲۸ ور ته وئي ویل چه دا چا
دُښمن سړي کړي دي نو غُلامان ور ته وویل چه ته غواړي چه موږ لاړ
۲۹ شو او هغه وکاږو ؟ ۲۹ ده ووِ چه نه هسي نه وِي چه دَ جَونډر په
۳۰ وښکلو کښ غنم هم ورسره وکاږئ ۳۰ دَلوُکیدلو پوري دواړه لوئیدو ته پریږدئ او زه
به دَ لو په وقت لوګرو ته ووایم چه وړمبَي جَونډر وباسئ او دَ سیځلو دَپارَ
ئي کیډئ وتړئ مګر غنم ځما په انبارخاني کښ جمع کړئ
۳۱ ۳۱ او ده هغو ته یَو بل مثال راوړ وئي ویل چه دَ آسمانونو
بادشاهي دَ آوړي دَداني په شان دَه چه یَوه سړي هغه واخستله او
۳۲ په خپل پټي کښ ئي وکرله ۳۲ هغه له ټولو تخمونو نه وړوکي دَه مګر
چه وټوکیږي نو له ټولو ساکو نه لویه ده او ونه کیږي څو چه دَ هوا مرغان
راځي دَ هغي په ښاخونو کښ استوګنه کوي
۳۳ ۳۳ هغو ته ئي یَو بل مثال ووایه چه دَ آسمانونو بادشاهي دَ خمیري
په شان دَه چه یَوي ښځي واخستله او په دریو اوړیو اوړو کښ ئي پټه
کړه. تر هغه پوري چه ټول خمیره شول
۳۴ ۳۴ دا ټولي خبري یسوع هغو ته په مثالونو کښ وکړي او بي مثاله
۳۵ ئي هیڅ ورسره نه ویل ۳۵ تا چه هغه خبره چه نبي ویلي وَه پوره
شي چه

زه به خپله خوله په مثالونو پرانزم

او هغه خبري چه له بنيادَ دَ عالمَ پټي وي هغوي ته به يُ ووايم
۳۶ ۳۶ نو تولِيـو له يُ رخصت ورکړ کور ته راغي او شاگردان
۳۷ يُ ورغلل و يُ ويل چه دَ پټي دَ جَوندر مثال موږ ته بيان کړه ۳۷ ده
په ځواب کښ ورته وويل چه هغه چه ښه تخم کري دَ انسان ځوي
۳۸ دي ۳۸ پټي دنياده ښه تخم دوي دَ بادشاهيُ ځامن دِيْ مګر جَوندر دَ شرير
۳۹ ځامن دِي ۳۹ او هغه دُښمن چه هغه يُ وکرل اِبليس دي او لوآخر دَ
۴۰ جهان دي او لوګرِي فرښتي دِي ۴۰ نو لکه جَوندر چه ټولېږي اوپه اور
۴۱ کښ سيځلي شِي هم هسي به په اٰخر دَ جهان کښ وشِي ۴۱ دَ انسان
ځوي به خپلي فرښتي واستوِي او هغه به ټول تيندک ورکوونکي او بدکاران
۴۲ دَده له بادشاهيِ نه راټول کړِي ۴۲ او دَ اور په تنور کښ به يُ وغورزَوِي
۴۳ هلته به ژړا او غاښ چيچَيْ وِي ۴۳ نو به صادقان دَ خپل پلار په بادشاهيُ
کښ دَ نمر په شان وځلېږِي هغه چه غوږونه لرِي واوِ ورِي
۴۴ ۴۴ بيا بادشاهِي دَ آسمانونو دَ هغي خزانيِ په شان دَه چه په
پټِي کښ پټه وَه چه يَوه سړِي وموندله او پټه يُ کړه او دَ هغي له
خوشحاليُ نه لاړ هر څه چه يُ لرل خرڅ يُ کړل او هغه پټي يُ وپيرود
۴۵ ۴۵ بيا بادشاهِي دَ آسمانونو دَ يَو سوداګر سړِي په شان ده چه
۴۶ دَ ښو مرغلرو لټونکي وه ۴۶ اوچه يَوه ډيره قيمتِي مرغلره يُ بياموندله
نو لاړ او هر څه چه يُ لرل خرڅ يُ کړل او هغه يُ وپيرودله
۴۷ ۴۷ بيا بادشاهِي دَ آسمانونو دَ جال په شان دَه چه په درياب کښ
۴۸ واچَاوه شه او له هره جنسَ يُ څه ټول کړل ۴۸ کوم وقت چه ډک شه
نو دَ درياب غاړِي ته يُ راېورته کړ او ورته کښيناستل ښه ښه يُ په لوښيو
۴۹ کښ جمعَ کړل مګر ناکاره يُ لري وغورزول ۴۹ پس دا هسي به په اٰخر
دَ جهان کښ وشِي چه فرښتي به راووزِي او شريران به دَ عادلانو له
۵۰ مينځَ بيل کړِي ۵۰ او هغه به دَ اور په تنور کښ وغورزوِي او هلته به
ژړا او غاښ چيچَيْ وِي

۵۱ تاسو په دي ټولو پوه شوئ؟ دوي ور ته وو چه هو ۵۲ بيا ۵۱ ۵۲
ئې هغو ته وويل چه هر کاتب چه دَ آسمانونو دَ بادشاهئ تعليم موندلې
دي دغه دَ هغه کور دَ خاوند په شان دي چه له خپلې خزانې نه نوي
او زاړه څيزونه راوباسي
۵۳ او داسي وشول چه يسوع دا مثالونه تمام کړل نو له هغه ځاي ۵۳
نه روان شه ۵۴ خپل ملک ته راغي او هغو ته ئې دَ دوي په عبادتخانې ۵۴
کښې داسي تعليم وکړ چه دوي حيران شول او وئې ويل چه دې سړي
دا حکمت او قدرتونه ئې له کومه کړل ۵۵ دا دَ ترکاڼ ځوي نه دي څه ؟ ۵۵
او دَ مور ئې مريمه نوم نه دي څه ؟ او ورونړه دَده يعقوب او يُوسف
او شمعُون او يهُودا نه دي څه ؟ ۵۶ او ټولي خويندي ئې له مونږ سره ۵۶
نه دي څه ؟ پس دا ټول څه ئې له کومه کړل ۵۷ او هغو په ده په ۵۷
تيندک وخوړ مګر يسوع دوي ته وويل چه هيڅ نبي بيعزّت نه دي
مګر په خپل وطن او په خپل کور کښې ۵۸ او ده دَ هغو دَ بي ايمانۍ په ۵۸
سببَ هلته ډير قدرتونه ونه کړل ✣

# څوارلسم باب

۱ هغه وقت چه هِيروديس دَ څلورمي حاکم شهرت دَ يسوع واوريده ۱
۲ نو خپلو نوکرانو ته ئې وويل چه دا يُوحَنّا بپتسما ورکونکي دي چه ۲
له مړيو نه راپورته شوي دي له دې سببَ په ده کښې قدرتونه اثر
کوي ۳ ځکه چه هِيروديس يُوحَنّا ونيو او وئې تاړه او په قيدخانې ۳
کښې ئې واچوه دَ هِيروديې په سببَ چه دَده دَ ورور فيلبُوس ښځه وه ۴ ۴
ځکه چه يُوحَنّا ور ته ويل چه تا له دَدې ښځې لرل روا نه دي ۵ او چه ۵
ئې دَ وژلو قصد کاوه له ټولي نه ويريده ځکه چه دوي دي نبي ګاڼه
۶ هرکله چه دَ هِيروديس دَ پيدا کيدلو ورځ راغله نو دَ هِيروديې لُور دَ ۶
دوي په مينځ کښې ګډيدله او هِيروديس ئې خوشحال کړ ۷ نو په قسم ۷
ئې له هغې سره وعده وکړه هر څه چه وغواړي هغې له به ئې

۸ ورکړي ۸ نو چه دا له خپلي مور نه لمْسَولي شوي وه وئ ويل چه سرد يُوحنّا
۹ بپتسما ورکونکي دلته په تالِکي راکړه ۹ او بادشاه غمْگين شه مگر دَ سوګندونو
۱۰ خوړلو او دَ مجلسيانو په سبَبْ ئي حکم وکړ چه ور ئي کړئ ۱۰ اووائ ستول
۱۱ سر دَ يُوحنّا ئي په قيدخاني کښ پريکړ ۱۱ او دَ هغه سر ئي په تالِي کښ راوړ
۱۲ او جِيلَئ ته ئي ورکړ او هغي خپلي مور له يووړ ۱۲ نو شاګردان ئي راغلل
مړي ئي واخست ښخ ئي کړ او راغلل يسوع ئي خبر کړ
۱۳ ۱۳ يسوع چه دا واوريدل نو په بيړئ کښ يواځي له هغه ځاي نه
يَوي ويراني ته لاړ او ټولي چه دا واوريدل نو له ښهرونو نه ووتل پياده
۱۴ په ده پسي روان شول ۱۴ او چه بهر راغي يَو لوي ټولي ئي وليد په هغو
۱۵ باندِ ئي زړه سوي وکړ او رنځورانو دَ دوي ته ئي شفا ورکړه ۱۵ چه ماښام
شه نو شاګردان ئي ورغلل و ئي ويل چه دا ځاي بيابان دَي اِو اوس وقت
هم تير شه نو ټوليو ته رخصت ورکړه چه کليو ته لاړ شي او دَ ځانونو
۱۶ دَپارَ خوراک وپيرِي ۱۶ ليکن يسوع ورته ووِ چه دَدوي تلل ضرور نه دِي تاسو
۱۷ ورکړئ چه وئ خوري ۱۷ هغو ورته وويل چه مونږ دلته بي له پنځو ډوډيو او
۱۸ له دوو کبانو نه نور هيڅ نشته ۱۸ و ئي وِ چه هغه ما له دلته راوړئ
۱۹ ۱۹ او هغه ټولي ته ئي حکم ورکړ چه په وښو کښيني او هغه پنځه ډوډئ
او دوه کبان ئي واخستل دَ آسمان په طرف ئي وکتل برکت ئي ورکړ او
هغه ډوډئ ئي ټکړي ټکړي کړي او شاګردانو ته ئي ورکړي او شاګردانو
۲۰ ئي ټوليو ته ۲۰ او ټولو وخوړل او ماړه شول او دَ هغو له ټکړو نه چه
۲۱ پاتي شولي دولس ټوکرئ ئي ډکي واخستلي ۲۱ او خوړونکي بغير له ښځو او له
هلکانو نه قريب پنځه زره سړي وُو
۲۲ ۲۲ او دستي ئي خپلو شاګردانو ته تاکيد وکړ چه تر هغه پوري چه
۲۳ ټولي رخصت کړي بيړئ ته دِ وخيژي دَ ده دَ وړاندِ دِ پوري وزِي ۲۳ او چه
ټولي ته ئي رخصت ورکړ نو دَ دُعا غوښتلو دَپارَ يواځي په غره وخوت او چه
۲۴ ماښام شه نو هلته تنها وه ۲۴ مگر هغه وقت بيړئ دَ درياب په

٢٥ منځ کښې وه په چپو کښې نښتي وه ځکه چه باد مخالف وه ٢٥ او په څلورم
٢٦ پهر دَ شپې په درياب بانِدِ تلونکي هغوله ورغي ٢٦ او چه شاګردانو ئې په
درياب بانِدِ تلونکي وليد نو ډير وويريدل و ئي ويل چه دا يَو خيال دَي
او له ويرې ئې ناري وکړي
٢٧ ٢٧ مګر يسوع دستي له هغو سره خبري وکړې ورته وئي ويل
٢٨ چه خاطر جمع لرئ زه يم مه ويريږئ ٢٨ او پطرس ځواب ورکړ و ئي
ويل چه اي خداوندَ که ته يي نو ما ته حکم وکړه چه زه هم په اوبو
٢٩ بانِدِ در شم ٢٩ هغه ورته ووِ چه راشه نو پطرس له بيړئ نه ورکوز شه
٣٠ په اوبو بانِدِ ګرزيدنکي شه چه يسوع ته ورشي ٣٠ مګر چه باد ئې وليد
نو وويريده او چه ډوبيدو ته نژدي شه نو په نارو سره ئې وويل چه
٣١ اى خداوندَ خلاص مِ کړه ٣١ نو يسوع زر لاس وروغزاوه دي ئي ونيو
٣٢ او ورته و ئې وِ چه اي کم ايمانه ولي دِ شک راوړ ٣٢ او چه بيړئ ته
٣٣ وختل نو باد ودريده ٣٣ او هغه چه په بيړئ کښ وُو ورته راغلل
او سجده ئي ورته وکړله او وئي وِ چه ته په رښتيا سره دَ الله ځوي يي
٣٤ ٣٥ ٣٤ چه پوري شول نو دَ ګنيسرت زمکي ته راغلل ٣٥ دَ
هغه ځاي سړو دي وپيژانده او دَ ملک په هر طرف ئي خبر واستاوه
٣٦ او ټول رنځوران ئي ورته راوستل ٣٦ او له دي ئې سوال وکړ چه
ټش پلو دَ لمنی ته دِ لاس وروړي نو هر چا چه لاس وروړ نو شفا ئې
وموندله +

## پنځلسم باب

١ ١ هغه وقت فريسيان او کاتبان دَ اورشليمَ يسوع ته راغلل او و ئي
٢ ويل ٢ چه ولي ستا شاګردان دَ بزرګانو له روايت نه تجاوز کوي چه دَ ډوډي
٣ خوړلو په وقت لاسونه نه وِينځي ؟ ٣ ده ځواب ورکه ورته و ئي ويل چه
٤ تاسي هم ولي دَ خپل روايت په سبب دَ الله له حکمَ تجاوز کوئ؟ ٤ ځکه
چه الله ويلي دي چه خپل پلار او مور له عزت ورکوه او چه دَ پلار يا دَ

٥ مور بد ویونکي وِي قتل دِ شِي ٥ مګر تاسي وایئِ چه هرڅوک چه مور یا
پلار ته ووایِي چه هرڅه چه تاسي ته له ما نه فائده وکړي شِي نذر ده
٦ ٦ هغه دَ خپل پلار عزّت نه کوِي نو تاسي دَ خپل روایت په سبب دَ الله
٧ خبري باطلي کړي ٧ اي رياکارو ښاسي په حق کښ اَشعِيا ښه نبوّت
٨ وکــړ ٨ ویل ئي چه

دا امت څما عزّت په شونډو سره کوِي
مګر زړونه ئي له ما نه لري دِي
٩ ٩ لیکن دوي عبث څما عبادت کوِي
څکه چه په ځاي دَ فرضــو دَ سړو حکمونه فرض ښيِي

١٠ ١٠ نو ده هغه ټولي وباله او هغو ته ئي وویل چه واوریِ او پوه شيِ
١١ ١١ چه نه هغه څه چه په خولي ننوزِي سړي پلیتوِي بلکه هغه څه چه
١٢ له خولي نه راووزِي هم هغه څه سړي پلیتوِي ١٢ نو شاګردان ئي ورته
راغلل وئي ویل چه ته پوهیږِي چه فریسیانو دَ دي خبري له اوریدو نه
١٣ تیندک وخوړ؟ ١٣ ده ځواب ورکه و ئي ویل چه هر نهال چه څما اسماني
١٤ پلار نهال کړي نه دي له بیخ به وکښلي شِي ١٤ هغه پرېږدئِ چه ړانده
دَ ړاندو لارِ ښیونکي دِي پس که ړوند دَ ړانده لار ښیونکي شِي نو
١٥ دواړه به په ژورَ کښ پریوزِي ١٥ پطرَس ځواب ورکړ وئي ویل چه دا مثال
١٦ مونږ ته بیان کړه ١٦ ده ووِ چه تاسي تر اوسه پوري ناپوهَ يئِ څه؟
١٧ ١٧ تاسو نه پوهیږئِ څه ؟ چه هرڅه چه خولي ته ننه وزِي کیډه ته
١٨ پریوزِي او په چارچوبئِ کښ غورزاوه شِي ١٨ مګر هغه چه له خولي
١٩ نه راووزِي له زړه نه راځِي او هغه دِي چه سړي پلیتوِي ١٩ ولي چه
بد خِیالونه او خونونه او زِنا او حرامکارئِ او غلا او په دروغه ښاهدئِ
٢٠ او کفر له زړه نه راووزِي ٢٠ هم دا څیزونه سړي پلیتوِي مګر په ناولیو لاسو نو
خوړل سړي نه پلیتوِي

٢١ ٢١ یسوع له هغه ځاي نه روان شه دَ صور او دَ صیدا اطرافو

ته ورغي ۲۲ اوګوره چه يوه کنعاني ښځه له هغه حدونو نه راووتله ۲۲
او په نارو سره ئي ور ته وويل چه اي خداونده دَ داود ځويه په ما رحم
وکړه لُور ځما سخته ديـو نيولي دَه ۲۳ مګر ده هغي ته هيڅ ځواب ۲۳
ور نه کړ او شاګردان ئي ور ته راغلل سوال ئي ورته وکړو ئي ويل چه دا
رخصت کړه ځکه چه ځمونږ دَ ورستو ناري وهي ۲۴ ده په ځواب کښ و ۲۴
ويل چه زه استولي شوي نه يم مګر دَ اسرائيل دَ کور دَ ورکو شويو
ګډو دَپارَ ۲۵ مګر هغه راغله او ده ته ئي سجده وکړ و ئي ويل چه ۲۵
اي خاونده ځما مدد وکړه ۲۶ ده ځواب وکړ ور ته وويل چه دَ هلکانو ډوډيِ ۲۶
اخستل او کتړبو ته اچول ښه نه دي ۲۷ هغي ووِ هو اي خداونده مګر ۲۷
کتړي هم له هغو ټکړو نه خوري چه دَ خپلو خاوندانو له دسترخوانَ
پريوزي ۲۸ نو يسوع په ځواب کښ ور ته ووِ چه اي ښځي ستا ايمان لوي ۲۸
دي له تا سره دِ هسي وشي لکه چه ته غواړي پس په هغه ساعت
دَ هغي لُور شفا ومونده

۲۹ او يسوع له هغه ځايَ روان شه دَ جَليل درياب ته نژدي ۲۹
ورغي او په غره باندِ وخوت او هلته کښيناست ۳۰ او ډير ټولي ده ته ۳۰
راغلل چه ګډان اوګونګان او ړانده او شلان او نور ډير ورسره او هغه
ئي دَ ده په پښو وغورزول او ده هغه جوړ کړل ۳۱ تر دي حده چه ټولي ۳۱
ګونګان ويونکي او شلان تلونکي او ړانده ليدونکي وليدل نو تعجب ئي
وکړ او دَ اسرائيل دَ الله تمجيد ئي وکړه

۳۲ يسوع خپل شاګردان راوبلل او و ئي ويل چه په دي ټولي م ۳۲
زړه وسه ځکه چه ترِ اوسه دري ورځي دِي چه له ما سره ميشته دِي
او دَ خوراک دَپارَ هيڅ نه لري او نه غواړم چه وږي ئي رخصت کړم چري
نه وِږي چه په لاري کښ ستومانه شي ۳۳ نو شاګردانو ئي ور ته وويل ۳۳
چه په صحرا کښ مونږ ځخه دومره ډوډيِ چرته دِي چه دومره ډير ټولي
پرِ ماړه کړو ۳۴ نو يسوع هغو ته وويل چه تاسو ځو ډوډيُ لرئ هغو ۳۴

٣٥ وویل چه اووه او یَوَڅو ورو کي کبان ٣٥ او هغه نتولي ته يُ وفرمايل چه
٣٦ په زمکه باندِ کښېنئ ٣٦ نو هغه اووه ډوډيُ او کبان ني را واخستل او
شکر يُ پرِ وکړ ټکري ټکري کړي شاګردانو ته ني ورکړي او شاګردانو يُ
٣٧ نتوليو ته ٣٧ او وارو وخوړل او ماړه شول او له هغو ماتو ټکړو نه چه
٣٨ پاتي شوي وي اووه شکرونه ني ډک واخستل ٣٨ هغه خوړونکي سړي
٣٩ بي له ښځو او له هلکانو نه څلور زره وُو ٣٩ نو نتولي ني رخصت کړل
او بيړيِ ته وخوت او دَ مجدَن سرحد ته راغي ٭

# شپاړلسم باب

١ آ او فريسيان او صَدوقيان راغلل او دَ آزمايښت دَپارَ يُ سوال ورِ نه
٢ وکړ چه له آسمانَ نښنه راوښيه ٢ هغه په ځواب کښ ورته وويل چه
تاسي دَ ماښام په وقت وايئ چه هوا به ښه وِي ځکه چه آسمان سُور
٣ دَي ٣ او دَ سحر په وقت وايئ چه نن ورځ به سيليِ شي ځکه چه
آسمان سُور او دوند دَي دَ آسمان دَ مخ په تميز کولو پوهيږئ مګر
۴ دَدي وختونو نښي کولي نه شئ ۴ بده او حرامکاره پيړيِ نښي غواړي او
بي له نښي دَ يُونس به هيڅ يَوه نښنه دوي ته ورنه کړي شي او ده
هغه پريښودل ورنه لاړ شه
٥ ٥ او چه شاګردان يُ پوري وتل ډوډي اخستل يُ هيري کړي وُو
٦ ٦ نو يسوع هغو ته وويل چه کوريُ دَ فريسيانو او دَ صدوقيانو له
٧ خميري نه احتياط کويِ ٧ هغو په خپلو زړونو کښ فکر وکړ او وئي ويل چه
٨ باري له دي سببَ وايي چه ډوډيِ مو راخستي نه ده ٨ يسوع په دي وپوهيده
و ئي ويل چه اي کم ايمانو ولي په خپلو زړونو کښ فکر کويِ چه ډوډيِ
٩ نه لري څه ٩ لا تر اوسَ پوري په هغو پنځو ډوډو دَ هغو پنځو زرو
سړو او په څو [دکو] ټوکريو اخستلو باندِ پوه شوي نه يِئِ او په ياد يُ نه
١٠ راوريِ ١٠ او نه په هغو اووه ډوډيو دَ څلورو زرو او څو [ډک]
١١ شکرونو چه مو واخستل ١١ ولي نه پوهيږئِ چه ما دَ ډوډيو په باب کښ

تاسو ته ویلي نه دي بلکه دَ فریسیّانو او صَدُوقیّانو له خمیری نه احتیاط
کوئ ١٢ نو هغو معلوم کړل چه ځان احتیاط له خمیري دَ ډوډیو نه ویل ١٢
بلکه دَ فریسیّانو او دَ صدوقیّانو له تعلیمَ
١٣ او یسوع چه دَ قَیصَرِیه فِیلپيّ سرحدو ته ورغي نو له خپلو ١٣
شاګردانو ئې پوښتنه وکړه وئ ویل چه سړي څه وایي دَ انسان دَ ځوي
په باب کښ ١٤ هغو وویل چه ځیني وایي چه یُوحَنّا بپتسما ورکونکيَ او ١٤
ځیني اِلیاسُ او ځیني یَرمِیا یا یو له نبیانو نه ١٥ دوي ته ئې وویل چه تاسي ١٥
ما ته څه وایئِ چه زه څوک یم؟ ١٦ نو شَمعُونُ پطرَس په ځواب کښ ور ته ١٦
ووِ چه ته مسیح ځوي دَ ژوندِي الله یي ١٧ یسوع په ځواب کښ ور ته ١٧
ووِ چه اي شَمعُونَ ابنِ یُونا ته مبارک یي ځکه چه داخبره تا ته غوښي
او وِیني ښکاره کړي نه ده بلکه پلار ځما چه په آسمانونو کښ دي ١٨ او ١٨
دا هم زه تا ته وایم چه ته پطرَس یي، او په دي پرښه باندِ به کِلیسیا خپله
بنا کړم او دَ دوزخ دروازي به پرِ غالبي نه شي ١٩ او زه به دَ آسمانونو ١٩
دَ بادشاهئِ کُونجي تا ته درکړم او هر څه چه ته ئې په زمکه وتړي هغه
به په آسمانونو کښ هم وتړلي شي او هر څه چه ته ئې په زمکه پرانزي
هغه به په آسمانونو کښ هم پرانتلي شي ٢٠ بیا ئې شاګردانو ته تاکید ٢٠
وکړ چه هیچا ته مه وایئِ چه دا مسیح دي
٢١ له هغه وقتَ یسوع خپلو شاګردانو ته په ښوولو شروع وکړه ٢١
چه ما له اورشلیم ته تلل او له بزرګانو او دَ سردارکوهنانو او له کاتبانو نه
ډیر څه زغمل او مړ کیدل او په دریمه ورځ ژوندِي پورته کیدل ضرور
دِي ٢٢ نو پطرَس دي وینو او په صنع کولو ئې سر شه او وئ ویل چه ٢٢
اي خداوندَ تا دِ الله وساتي دا دِ هیچري په تا ونه شي ٢٣ ده مخ وروګرزاو ٢٣
او پطرَس ته ئې ووِ چه اي شیطانه را نه ورستو شه ته ځما دَ پاره تیندک
یي ځکه چه ته دَ الله دَ خبرو فکر نه کوي بلکه دَ سړیو ٢٤ بیا یسوع خپلو ٢٤
شاګردانو ته وویل چه که څوک په ما پسي تلل غواړي نو له خپل ځانَ دِ انکار

۲۵ وكړي او صليب خپل دِ واخلي او په ما پسي دِ راشي ۲۵ ليكن هر څوك
چه خپل ځان خلاصول غواړي هغه به هلاك كړي او هر څوك چه ځما
۲۶ دَپارَ خپل ځان هلاك كړي بيا به ئې مومي ۲۶ ځكه چه سړي له به څه
فائده وِي چه ټوله دنيا وګټي او خپل ځان بايلي ياخو سړي به دَخپل
۲۷ ځان په بدل څه وركړي ۲۷ ځكه چه ځوي دَ انسان به دَخپل پلار
په لوئي كښ له خپلو فرښتو سره راشي او هغه وقت به هر سړي ته دَخپل كار
۲۸ په برابرئ سره جزا وركړي ۲۸ زه تاسي ته رښتيا وايم چه ځيني دَهغو
دلي ولاړ دِي چه هرګز به مرګ و نه څكي تر هغه پوري
چه ځوي دَ انسان په خپل بادشاهي كښ راتلونكي و نه وينې +

## اوه لسم باب

۱ آ او شپږ ورځي پس يسوع پطرس او يعقوب او دَده ورور يوحنّا ئې
۲ واخستل او يوه لوړ غرهٔ ته ئې بيل وخيژول ۲ او دَدوي په مخ كښ
ئې شكل بدل شه او څهره ئې دَ نمر په شان وځليدله اوجامي ئې
۳ دَ نور په شان سپيني شوي ۳ اوګوره موسىٰ اوالياس له ده سره خبري
۴ كونكي دوي ته ښكاره شول ۴ نو پطرس ځواب وركړ او يسوع ته ئې وويل
چه اي خداوندَ ښه دِي چه مونږ دلي يو كه دِ مرضي وِي نو دلي به
۵ دري جونګړي جوړي كړو يوه ستا دَپارَ يوه دَ موسىٰ يوه دَ الياس ۵ ده لا دا
خبري كولي ګوره چه يوه نوراني اوريځه په دوي باندِ سيوري شوله اوګوره
چه يو آواز له اوريځي نه راغي چه دا ځما محبوب ځوي دي چه زه له ده
۶ نه ښه خوښ يم تاسو دَده واورئ ۶ او چه شاګردانو دا واوريده نو
۷ پرمخي پريوتل او ډير وويريدل ۷ او يسوع راغي هغه ئې مسه كړل او
۸ وئي ويل چه پاڅئ مه ويريږئ ۸ هغو چه سترګي پورته كړلي نو بې له يسوع
ئې نور هيڅوك و نه ليدل

۹ ۹ او چه له هغه غره نه ښكته راتلل نو هغو ته ئې تاكيد وكړ و ئې
ويل چه دا رويا چا ته مه وايئ تر هغه پوري چه ځوي دَ انسان له مړو

پورته شِي ۱۰ او شاګردانو ئي پوښتنه وکړه و ئي ويل چه ولي کاتبان وائِي ۱۰
چه دَ اِلیاس راتله رومبِي بايده دِي ۱۱ ده په ځواب کښ وويل چه اِلیاس ۱۱
به اول راشِي او ټول څيزونه به په خپل حال کړِي ۱۲ مګر زه تاسي ته وايم ۱۲
چه اِلیاس اوس راغلي دَي ليکن دوي و نه پېژانده او هغه څه چه ئي
غوښتل ورسره ئي وکړل هم هسي به دَ انسان ځوي ډېر تنګِ وزغمي ۱۳ هغه ۱۳
وقت ئي شاګردان وپوهيدل چه دي دَ يُوحَنّا بپتسما ورکونکي په حق
کښ له هغو سره خبري کوي

۱۴ او چه ټولي ته راغلل نو يَو سړي ورته راغي او زنګنونه ۱۴
ئي ولګول ۱۵ و ئي وِ چه اي خداوندَ په ځوي مِ رحم وکړه چه ۱۵
مِرګي وهلي دَي او ډېر ځله په اور ډېر ځله په اوبو کښ پريوزي ۱۶ او ۱۶
ستا شاګردانو ته مِ ورووست ليکن شفا ئي ورکولي نه شوه ۱۷ يسوع ۱۷
ځواب ورکړ و ئي وِ چه اي بي‌ايماني او کږي پېړئِ زه به ځو له تاسي
سره يم او تر کومه به ستاسي زغم کوم دلته ئي ما ته راولئِ ۱۸ يسوع ۱۸
هغه وراټه او ديو ورنه ووت او له هغه ساعتَ هغه هلک جوړ
شه ۱۹ بيا شاګردان بيل يسوع ته ورغلل و ئي ويل چه مونږ هغه ولي يستلي ۱۹
نه شو ۲۰ هغو ته ئي وويل چه ستاسي دَ خپلي کم ايماني له سببَ ځکه ۲۰
چه زه تاسي ته رښتيا وايم چه که تاسو دَ آوُري دَ داني په قدر
ايمان لرئِ نو که مو دي غره ته وبلي چه له دي ځايَ هغه ځاي ته
لاړ شه نو هغه ځاي ته به لاړ شي او هيڅ خبره به ستاسي
دَپارَ ګرانه نه وِي

۲۱ هغه وقت چه دوي په جَليل کښ ګرزيدل نو يسوع ورته ووِ ۲۱
چه دَ انسان ځوي به دَ سړو لاسو ته وسپارهَ شي ۲۲ او دوي به هغه ۲۲
قتل کړِي او په دريمه ورځ به پاڅه‌ولي شِي او هغه نهايت غمجن شول
۲۳ او چه کَفَرناحُوم ته راغلل نو محصول اخستونکي دَ دوو دِرهمو پَطرُس ۲۳
ته راغلل وئي ويل چه ستاسي اُستاذ دوه دِرهمه نه ورکوي ؟

۲۴ هغه ورته ووِ چه هو ۲۴ او چه دي كورته راغي يسوع وړمبي ورته ووِ
و يُ ويل اي شَمعُونَ ته څه پوهيږي چه بادشاهان دَ زمكي محصول يا
۲۵ جُزيه له چا اخلِي له خپلو ځامنو نه كه له پردو نه ۲۵ نو ده وويل چه له
۲۶ پردو نه يسوع ورته ووِ چه نو په يقِين هلكان خو آزاد دِي ۲۶ ليكن
دَدي خبري دَپارَ چه مونږ دوي ته تيندک ور نه كړو نو لاړ شه په درياب
كښ كُنډه وغورزوه او وړمبيَ كَب چه وخيژي و يُ نيسه او خوله يُ
وازه كړه يوه سَتيَر به په كښ ومومي وايُخله څما او دَ خپل ځان دَپارَ
يُ وركړه *

# اتلسم باب

۱ ۱ هغه وقت شاګردان يسوع ته راغلل و يُ ويل چه دَ آسمانونو په
۲ بادشاهيِ كښ لوي څوک دي ۲ ده يو ووړوكيَ هلک راوباله او دَ دوي په
۳ مينځ كښ يُ ودراوه ۳ او و يُ ويل چه زه تاسي ته رښتيا وايمِ چه كه
تاسي و نه ګرزيږئ او دَ ووړوكي هلكانو په شان نه شيئِ نو به بادشاهي
۴ دَ اسمانونو كښ به په هيڅ شان داخل نه شيئِ ۴ پس هر څوک چه خپل
ځان دَدني ووړوكي هلک په شان خاكسار كړِي هم هغه په بادشاهيِ دَ
۵ آسمانونو كښ لوي دي ۵ او هر څوک چه څما په نامه داسي ووړوكيَ هلک
۶ قبول كړِي هغه ما قبول كوِي ۶ مګر هر چا چه له دي ووړوكيو نه چه په
ما باندِ ايمان لرِي يوه ته تيندک وركړِ هغه لره دا ښه دِي چه دَ ژرندي پل
دَده په غاړه كښ ځوړند كړي شِي او دَ درياب په ژوره كښ ډُوب كړي
۷ شِي ۷ هئ پـه دي دُنيا دَ تيندكونو له سبَبَ څكه چه راتله دَ تيندكونو
ضرور دِي مـګر هئ په هغه سړِي چه دَده په سبَبَ تيندک راشِي
۸ ۸ پس كه ستا لاس يا ستا پښي تا ته تيندک دركړي نو پرِي يُ كړه
او له ځان يُ وغورزوه څكه چه تا له غوره دا دَه چه ګډ يا شَل په ژوندانه
كښ ننوزِي نه دا چه دوه لاسونه يا دوه پښي دِ وِي او په ابدِي اور كښ
۹ واچاوه شِي ۹ او كه چرِي ستا سترګه تا له تيندک دركړي نو و يُ باسه

او له ځانَ ني وغورزوه ځکه چه تا له دا غوره ده چه کانړا په ړوندانه کښ
ننوزي نه دا چه د واړه سترګي دِ وِي او دَ جَهَنّم په اور کښ وغورزاوه شِي
۱۰ ګورئِ چه هيڅ يَو له دي وړوکيو سپک مه ګڼزئِ ځکه چه زه تاسي ته وايم ۱۰
چه دَدوي فرښتي خما دَ پلار مَخ چه په آسمانونو کښ دي هميشه وِينِي -
۱۱ ابن آدم راغلي دَي چه ورک شوو له نجات ورکړِي ۱۲ تاسو څه ګُمان ۱۱ ۱۲
کـــوئِ چه که يَو سړي سل ګډي لِري او چري يَوه له هغو نه
ورکه شِي نو هغه نه نوِي نه پريږدِي او په غره کښ نه ځِي هغه ورکه شوي
به و نه لټوِي ؟ ۱۳ او که چري ئِ بيامومِي نو زه تاسي ته رښتيا وايم چه دي ۱۳
به په هغي بانِدِ له هغو نه نوِي چه ورکي شوي نه وِي زيات خوشحالَ شِي-
۱۴ هم داسي ستاسي دَپلار چه په آسمانونو کښ دَي مرضِي ني نه دَه چه ۱۴
يَو له دي وړوکيو نه هلاک شِي
۱۵ او که ستا ورور ستا ګناه وکړِي نو لاړ شه او يواځي په خپل ۱۵
مينځ کښ هغه ته ووايه نو که چري ئِ ستا خبره واوريدله خو ورور دِ وګاټه
۱۶ او که وائِ نه وريده نو يَو دوه سړِي له ځانَ سره بوزه چه دَ دوو دريو ۱۶
شاهدانو له خولي نه هره خبره ثابته شِي او که دَ هغو خبره ني هم وانه وريده
نو کلِيسيا ته خبر کړه او که چري دَ کلِيسيا خبري هم و نه منلي نو ته ئِ
لکه کافِر يا اِجاره دار غوندِ وګڼزه ۱۷ زه تاسي ته رښتيا وايم چه هرڅه چه ۱۷
تاسو ئِ په زمکه کښ وتړئِ هغه به په آسمان کښ هم تړلي شوي وِي او
هرڅه چه تاسو ئِ په زمکه کښ پرانزئِ په آسمان کښ به هم پرانتلي شوي وِي
۱۸ بيا تاسي ته وايم چه که له تاسو نه دوه سړِي به زمکه بانِدِ دَ کوم څيز دَپارَ ۱۸
چه غواړي ئِ متفق شِي نو هغه به خما دَ پلار له لوري چه په آسمان کښ دَي
ودوي ته وشِي ۱۹ ځکه چه په هرځاي چه دوه يا دري تنه خما په نُوم سره ۱۹
يټول شِي زه هلته دَ هغو په مينځ کښ يم
۲۰ نو پَطرَس ور ته راغي و ئِي وِ چه اي خداوندَ چه که خما ورور خما ۲۰
ګناه وکړِي نو زه هغه څو واره پريږدم تر اووو وارو څه ؟ ۲۱ يسوع ور ته ۲۱

۲۲ وِ چه تر اوو وارو تا ته نه وايم مګر تر اووو په اوياو کښ ۲۳ له دي
سبب چه بادشاهي دَ اَسمانونو دَ هغه سړِي په شان ده چه بادشاه وِي
۲۳ او له خپلو مريونو ئې حساب آخستل وغوښتل ۲۴ او چه په حساب
اخستلو ئې شروع وکړه نو يَو سړي ورته راوستي شه چه دَ لسو زرو
۲۴ قِنطاَرو پوره وړي ئې وه ۲۵ مګر چه دَ آداکولو دَپارَ هيڅ ورڅخه نه وُو نو خاوند
ئې حکم وکړ چه دي او دَده ښځه ئي او ځامن او نور هرڅه چه لري خرڅ
۲۵ دِ کړلي شِي او پور دِ آدا کړي شِي ۲۶ نو هغه مريَي پريوت او سجده ئې
ورته وکړه و ئې ويل چه اي خاوندَ صبر راته وکړه ټول پور به دِ آدا
۲۶ کړم ۲۷ نو خاوند ئي په هغه مريي رحم وکړ پري ئي ښود او پور ئې ور
۲۷ و باخښه ۲۸ مګر چه هغه مريَي بهر ووت نو له هم خدمتو خپلو ئې يَو
وموند چه سل دِينار ئي په هغه باندِ پوروَو نو ترَ غاړي ئي ونيو او
۲۸ ورته و ئې ويل چه پور ځما راکړه ۲۹ نو هغه ئې په پښو پريوت او زاري
۲۹ ئي ورته وکړه چه ما ته صبروکړه پور به دِ درکړم ۳۰ مګر هغه و نه مانه
۳۰ لاړ شه په قيدخاني کښ ئې واچاوه ترَ هغه چه پور اداکړي ۳۱ نو دَ
هغه همخدمتو چه دا حال وليد ډير خپه شول او راغلل خپل خاوند
۳۱ ئې له ټولَ حالَ چه تير شوي وه خبر کړ ۳۲ نو دَ هغه خاوند دي را
وباله او ورته و ئي ويل چه اي شريرَ مريَ تا چه ما ته عرض وکړ نو
۳۲ ما هغه ټول پور در پريښود ۳۳ دا مناسب نه وه چه تا په همخدمتي خپل
۳۳ باندِ رحم کړي وي لکه چه ما په تا باندِ رحم وکړ ۳۴ او خاوند ئې په
قهر شه نو عذابونکو ته ئې وسپاره ترَ هغه پوري چه ټول پور ادا کړي
۳۴ ۳۵ هم دا هسي به آسماني پلار ځما له تاسي سره وکړي که چرِ هر يَو له تاسي
نه له خپلو زړونو نه خپل ورور و نه بخښيَ ❊

# نولسم باب

۱ ۱ او داسي وشول چه يسوع دا خبري پوره کړي نو له جَليلَ روان شه
۲ يوري دَ اَرْدَنَ په سرحد دَ يَهُودِيَّه کښ راغي ۲ او ډير ټولي ورپسي روان

شول او هلته يې هغو له شفا ورکړله
۳ او فريسيان د ازمايښت دپاره ورته راغلل و يې ويل چه ٣
سړي له روا دي چه له هره سببه خپلې ښځې له طلاق ورکړي څه؟ ۴ ده ځواب ٤
ورکه ورته و يې ويل چه تاسي لوستي نه دي چه خالق له اوّل نر او ښځه
پيدا کړل ۵ او و يې ويل چه د دي په سبب به سړي پلار او مور خپل ٥
پريږدي او له خپلې ښځې سره به پيوند شي او دواړه به سره يوه غوښه
شي ۶ نو پس له دي دوي دوه نه دي بلکه يوه غوښه نو هغه چه ٦
خداي په جفت کړي دي سړي دې يې بېل نه کړي ۷ دوي وويل چه بيا موسیٰ ٧
د طلاق نامې په ورکولو او په پرېښولو يې ولې حکم ورکړ ۸ ده ورته وو ٨
چه ستاسي د سخت دلۍ له سببه موسیٰ په پرېښيدلو ستاسي د ښځو
اجازت درکړ ليکن له اوّل دا رنګ نه وه ۹ مګر زه تاسي ته وايم چه ٩
هر څوک چه خپله ښځه بي د زناکارۍ له سببه پرېږدي او له بلې سره
نکاح وکړي هغه زنا کوي او هغه څوک چه له طلاقې شوې سره نکاح
وکړي زنا کوي ۱۰ شاګردانو يې ورته وويل چه هر کله چه د سړي حال ١٠
له ښځې سره داسي دي نو نکاح کول بايده نه دي ۱۱ نو ده هغو ته وويل ١١
چه ټول دا خبره منلې نه شي مګر هغه چه بخښنه ورته شوې ده -
۱۲ ځکه چه ځني خصي وي چه د مور له نس داسي پيدا شوي دي او ١٢
ځني خصي دي چه د سړو نه خصي شوي دي او ځني خصي دي چه
د آسمانونو د بادشاهۍ دپاره يې خپل ځان خصي کړي دي هر څوک چه
توفيق د منلو لري و دې مني
۱۳ هغه وقت يې څو هلکان ورته راوستل تا چه خپل لاسونه ١٣
په هغو کيږدي او دعا وکړي شاګردانو يې هغه ورټل ۱۴ مګر يسوع ١٤
وويل چه هلکان را پرېږدئ او ځما له راتلو يې مه منع کوئ ځکه چه
بادشاهي د آسمانونو د دا رنګو ده ۱۵ نو لاسونه يې په هغو کيښودل او ١٥
له هغه ځايه روان شه

۱۶ ۱۶ او گوره چه يَو سړي راغي ورته و ئي ويل چه اي اُستاذَ زه
۱۷ خه نيکي وکړم چه ابدِي ژوندون وسومم ۱۷ ده ورته ووِ چه ولي له ما نه
دَ نيکئِ پوښتنه کوي نيک خو يَو دي او که چرې دا غواړي چه په ژوندانه
۱۸ کښ ننوزي نو حکمونه وساته ۱۸ ورته و ئي وِچه کوم؟ يسوع ووِ دا چه ته خُون مه
۱۹ کوه زِنا مه کوه غلاؑ مه کوه او په دروغه شاهِدي مه له ۱۹ دَ خپل پلار
او مور عزّت کوه او له خپل گوانډي سره دَ خپل ځان په شان مُحَبّت
۲۰ ۲۱ کوه ۲۰ هغه ځوان ورته ووېل چه دا ټول مِ ساتلي دي اوس ما ته کوم
۲۱ باتي دي ۲۱ يسوع ورته ووېل چه که کامل کيدل غواړي نو لاړ شه خپل
څيزونه خرڅ کړه او غريبانو ته ئي ورکړه او په آسمان کښ به ستا دَ
۲۲ يارَ خزانه وِي او راشه په ماپسي شه ۲۲ ځوان چه دا خبره واوريده نو
ډير غمناک شه او لاړ له دي سببَ چه ډير مالونه ئي لرل
۲۳ ۲۳ نو يسوع خپلو شاگردانو ته ووېل چه زه تاسي ته رښتيا وايم
۲۴ چه دُنيادار به په گرانه سره دَ آسمانونو په بادشاهئِ کښ ننوزي ۲۴ بيا
تاسي ته وايم چه دَ اوښ تيريدل دَ ستني په سوم آسان دِي له ننوتلو
۲۵ دَ دُنيادارَ په بادشاهئِ دَ الله کښ ۲۵ اوچه شاگردانو ئي دا واوريدل
۲۶ نو ډير حيران شول و ئي ويل چه بيا څوک خلاصيدلي شي ۲۶ يسوع
هغو ته نظر وکړ او ورته و ئي ويل چه دا دَ سړيو په نزد ممکن نه دِي
۲۷ مگر دَ الله په نزد هر څه ممکن دِي ۲۷ نو پطرس ځواب ورکړ و ئي ويل
چه گوره مونږ ټول څيزونه ترک کړل او په تا پسي شولو بيا به مونږ
۲۸ څه وموسو ۲۸ يسوع ورته ووېل چه زه تاسي ته رښتيا وايم چه تاسي
چه په ما پسي راغلي يئ نو هرکله چه ځوي دَ انسان په نوِي پيدائښت کښ
دَخپلي لويئ په تخت باندِ کښيني پس تاسو به هم په دولسو تختو باندِ
۲۹ کښينئِ او په دولسو فرقو دَ اسرائيلو باندِ به حکومت وکړئِ ۲۹ او هرچا
چه کورونه يا وروڼه يا خويندي يا پلار يا مور يا اولاد يا زمکي ځما دَ نامه
دَپارَ ترک کړل نو يو په سل به ئي وموِمي او دَ ابدِي ژوندانه وارث به

۳۰ شي ۳۰ ليکن ډير وړمبني دي چه وروستني به شي او ډير وروستني دي چه
وړمبني به شي

# شلم باب

۱ ۱ څکه چه بادشاهي دَ اسمانونو دَ هغه کور دَ خښتن په شان ده
چه دَ صبا په وقت کښ ووتي تا چه په خپل تاکستان کښ مزدوران
۲ ونيوي ۲ او چه ده له مزدورانو سره يو دَ ورځي دينار مقرر کړ خپل تاکستان
۳ ته ني واستول ۳ بيا په دريم ساعت بهر لاړ نور بيکاره ولاړ ني په
۴ بازار کښ وليدل ۴ هغو ته ني وويل چه تاسو هم تاکستان ته لاړ
۵ شئ او هغه چه حق وي تاسو ته به ني درکړم هغه هم ورغلل ۵ بيا
په شپږم او په نهم ساعت کښ بهر لاړ او په هغه شان سره ني
۶ وکړل ۶ او نږدي په يولسم ساعت بهر لاړ څو نور ني بهر ولاړ وموندل
۷ ورته وني ويل چه ولي ټوله ورځ دلته بيکاره ولاړ يئ ۷ دوي وه له
دي سبب چه چا مزدوران نه کړو ده ورته ووي چه تاسو هم تاکستان
۸ ته لاړ شئ ۸ پس چه ماښام شه نو دَ تاکستان مالک خپل ناظر
ته ووي چه مزدوران راوبوله له وروستينو ني شروع وکړه تر وړمبنيو
۹ پوري ني مزدوري ورکړه ۹ نو چه دَ يولسم ساعت وال راغلل هر يوه
۱۰ يو يو دينار بيا موند ۱۰ او هرکله چه هغه وړمبني راغلل گمان ني وکړ
۱۱ چه مونږ به زيات ومومو هغو هم هغه يو يو دينار وموند ۱۱ او چه
۱۲ وا ني خستل نو دَ کور صاحب ته ني گله وکړه ۱۲ وني ويل چه دي وروستينو
يو ساعت کار کړي دي او له مونږ سره دي برابر کړل چه دَ ورځي سختي
۱۳ او گرمي مو وزغمله ۱۳ ده يو له هغو ته ځواب ورکړ ورته وني ويل چه
اي عزيزه زه له تا سره ناحقي نه کوم تا په يو دينار له ما سره وعده
۱۴ کړي نه وه خه ؟ ۱۴ هرڅه چه دي کيږي وا ني خله او ځه او ما لکه چه تا ته
۱۵ درکړل هومره به دي وروستنيو ته ورکوم ۱۵ او ما ته روا نه دي چه په
خپل مال سره هغه وکړم چه ني غوارم ؟ يا ستا سترگه بده ده خه ؟

١٦ چه زه نیک یم ١٦ په دې طور به ورستني وړاندي او وړاندني به
ورستني شي
١٧ ١٧ او چه یسوع اورشلیم ته خوت خپل دولس شاګردان ئي په
١٨ لاري کښ بیل کړل او ورته وئي ویل ١٨ چه ګوري اورشلیم ته خیژو
او ځوي د انسان به کوهنانو او کاتبانو ته وسپارلي شي او دوي به په
١٩ ده د قتل حکم وکړي ١٩ او غیر قومونو ته به ئي د ټوقو کولو او د کوړو
وهلو او د صلیب کولو د پار وسپاري او په دریمه ورځ به پورته کړي
شي
٢٠ ٢٠ هغه وقت د زبدي د ځامنو مور له خپلو ځامنو سره ورته
٢١ راغله او سجده ئي ورته وکړه او څه عرض ئي ورته وکړ ٢١ هغه دې ته
وویل چه څه غواړې دې ووې چه ته وفرمایه چه دا زما دوه ځامن
ستا په بادشاهئ کښ یو ستا په ښي لوري او بل دې په کیڼ لوري
٢٢ کښیني ٢٢ یسوع ځواب ورکه وئي ویل چه تاسو نه پوهیږئ چه څه
څیز غواړئ تاسي طاقت لرئ چه هغه پیاله وڅکئ چه زه ئي څکم دوي
٢٣ ووې چه هو طاقت لرو ٢٣ ده ورته ووې چه البته زما پیاله به وڅکئ مګر
په ښي او په کیڼ لاس زما کښیناستل زما په اختیار کښ نه دي چه
جا ته ئي ورکړم بي له هغه چا چه له پلار م ورته طیار کړي شوي
٢٤ دي ٢٤ هغو لسو چه دا واوریدل نو په هغو دوو ورونړو ډیر
٢٥ په قهر شول ٢٥ یسوع هغه راوبلل او ورته وئي ویل چه تاسو
خبر یئ چه د غیر قومونو حاکمان په هغو باندي امیري کوئ او غټان
٢٦ ئي په هغو اختیار کوي ٢٦ مګر ستاسو په میځ کښ دي داسي نه وي بلکه
هغه څوک چه ستاسو په میځ کښ لوئي غواړي خدمتکار ستاسي دي
٢٧ وي ٢٧ او هر هغه څوک چه غواړي چه په تاسي کښ اول شي نو مريئ
٢٨ ستاسي دي وي ٢٨ لکه چه ځوي د انسان نه د خدمت موندلو د پار بلکه
د خدمت کولو د پار راغلي دي او چه خپل ځان د ډیرو په فدیي

کښن ورکړِي
۲۹ ۲۹ او چه له اَرِيحا نه بهرتلل نو ډير تولِي دَده په وروستو
۳۰ راغلل ۳۰ او کوره دوه راَنده سړِي چه په لاري کښن ناست وُو دا ئي
واوريدل چه يسوع تيريږي نو په نارو سره ئي وويل چه اي خداوندَ
۳۱ دَداؤد خويَ په مونږ رحم وکړه ۳۱ او تولِي ورتل چه چُپ شئِ مګر هغو
لا زيات فرياد وکړ ويل ئي چه اي خداوندَ دَداؤد خويَ په مونږ رحم
۳۲ وکړه ۳۲ نو يسوع ودريده او هغه ئي وبلل ورته وئي وِ چه څه غواړِئ
۳۳ چه زه ئي له تاسي سره وکړم ۳۳ ورته وئي وِ اي خداوندَ چه سترګي
۳۴ مو وغړيږي ۳۴ نودَ يسوع زړه پرِ وسه سترګي دَ هغو ئي مسه کړي دستي
ئي بينا شوي او په ده پسي روان شول +

# يوويشتم باب

۱ ۱ او هرګاه چه دوي اورشليم ته نژدي شول او بَيتِ فګاته دَ زَيتون
۲ غره ته راغلل هغه وقت يسوع دوه شاګردان واستول ۲ ورته وِ ئي ويل
چه دي مخامخ کلِي ته ورشئِ او دستي به يَوه خره تړلِي شوي او کوچَي ورسره
۳ بياموئِ هغه پرانزئِ او ما له ئي راولئِ ۳ او که څوک چري څه درته وويل نو
وواياِ چه خداوند دَدوي حاجتمند دَي نو هغه به ئي فى الحال راواستوِي
۴ ۴ او دا تول شوِي دِي تا چه هغه چه نبِي ويلِي وُو پوره شي چه
۵ ۵ دَ صيحون لورته ووائِ
چه کوره ستا بادشاه تا له راځي
په حليمئِ سره په خرِي سور او دَخرِي په کوچِي باندِ
۶ ۶ نو شاګردان ئي لاړل او لکه چه يسوع فرمايلِي وُو هسي ئي وکړل
۷ ۷ خره او کوچَي ئي راوستل جامي ئي پرِ واچولي اوُ دي ورباندِ سور
۸ شه ۸ او ډيرو تولبو خپلي جامي په لارِ کښن وغوړولي او نورو دَ ونو
ښاخونه پريکول او په لارِ کښن ئي غوړول ۹ او تولِي چه په وړاندِ او په
وروستو دَده تلل په نارو سره به ئي ويل چه هُوشيعنَّا خوي دَ داؤد

له مبارک دِ وِي هغه چه دَ خداوند په نُوم راځِي هوشيعَنَّا په اَعلیٰ عِلّيِين
۱۰ کښِ ۱۰ او چه اورشليم ته ننوت نو ټول ښهر سره وخوځيده او ويل به
۱۱ ئي چه دا څوک دي ۱۱ نو ټولِيو وويل چه دا يسوع نبي دَ جَلِيل له ناصِرتَّ
دي
۱۲ ۱۲ او يسوع دَ الله هيکل ته ننوت او هغه ټول چه په هيکل
کښِ ئي خرڅول او پيرودل کړل باهر ئي و شړل او تختي دَ صَرّافانو او کُرسيِ
۱۳ دَ کَوترَو خرڅُونکِيو ئي وارولي ۱۳ او ورته و ئي وِيل چه ليکلِي دِي
چه زما کور به بَيتُ‌الصَّلوٰت بللي شِي مگر تاسي دَ غلوغار تر جوړ کړ
۱۴ ۱۴ او په هيکل کښِ ړانده او کُړان ورته راغلل ده هغه جوړ
۱۵ کړل ۱۵ او چه سردار کوهينانو او کاتبانو هغه کراماتونه چه ده وکړل وليدل
هم هغه هلکان چه په هيکل کښِ ئي په نارو سره ويل چه هوشيعَنَّا
۱۶ ځوي دَ داؤد له نو په غضب شول ۱۶ پس ده ته ئي وويل چه ته اوري
چه دا څه وائِي يسوع ورته وويل هو مگر تاسي هيڅکله لوستلِي نه دِي
۱۷ چه دَ هلکانو او دَ پَيّوزَوُدونکيو له خولي نه دِ ثنا کامله کړي ده ۱۷ او
هغه ئي پرېښودل له ښهرَ بهر راغي تر بَيتِ عِنيا هوري ئي شپه
۱۸ ۱۹ تيره کړه ۱۸ چه سحر بيرته ښهر ته ورته نو وږي شه ۱۹ او چه په
لاري ئي دَ اَنځير ونه وليده نو ورغي او چه بي له پاڼو ئي نور هيڅ په
هغي کښِ بيا نه موندل نو ورته و ئي ويل چه پس له دي دِ په تا کښِ
۲۰ تر ابده پوري ميوه و نه شي په هغه دم دَ انځير ونه وچه شوه ۲۰ او
چه شاگردانو ئي دا وليده نو تعجب ئي وکړ او و ئي ويل چه څنگه دستي
۲۱ دا دَ انځير ونه وچه شوه ۲۱ يسوع هغو ته په ځواب کښِ وويل
چه زه تاسي ته په ريښتيا سره وايم چه که تاسو ايمان لرئِ او شک
به رانه وړئِ نو تش دا دَ انځير کار به و نه کړئِ بلکه که
دي غره ته ووائِئ چه وښکلَي شه او په درياب کښِ وغورځولي شه هم هسي
۲۲ به وشِي ۲۲ او هرڅه چه له ايمان سره په دُعا وغواړئِ بيا به ئي مومئِ

۲۳ او چه هیکل ته ننوت او تعلیم ئې ورکاوه نو سردار کوهینان ۲۳
او سپین ږیري دَ قوم ورته راغلل او ورته وئې ویل چه ته په کوم اختیار
سره دا کارونه کوي او دا اختیار چا درکړي دي ۲۴ یسوع په ځواب کښې ور ۲۴
ته ووِ چه زه به هم له تاسو نه دَ یوې خبرې پوښتنه وکړم نو که تاسو
ما ته ووائِئ نو زه به هم تاسو ته ووایم چه په کوم اختیار سره دا کوم-
۲۵ بپتسما دَ یُوحنّا له کومه وه له آسمانه یا له انسانه هغو له ځان سره ۲۵
فکر وکړِ چه که چرې ووایُو چه له آسمانه وه نو دي به راته و
وایي چه ولې مو ایمان پرِ را نه ووړ ۲۶ او که ووایو چه له انسانه ۲۶
وه خو له خلقو ویرېږو ځکه چه ټول خلق یُوحنّا نَبي ګڼِي ۲۷ پس ۲۷
هغوی یسوع ته ځواب ورکړ وئې ویل چه مونږ نه پوهېږو ده هم
ور ته وویل چه زه هم درته نه وایمِ چه په کوم اختیار دا کارونه
کوم ۲۸ پس تاسو څه ګمان کوئِ چه دَ یوه سړي دوه ځامن وو اوّل ۲۸
ته ورغي او وئې ویل چه اي فرزند لاړ شه او نن په تاکستان کښې
نن ورځ کار وکړه ۲۹ هغه ځواب ورکړ وئې ویل چه نه ځم مګر پس ۲۹
له هغه پښیمانه شه او لاړ ۳۰ بیا هغه دویم ته ورغي او په هغه ۳۰
شان خبره ئې وکړه هغه ځواب ورکړ وئې وِ صاحبَ ځم او لاړ نه شه
۳۱ له هغو دوو نه کوم یوَ دَ خپل پلار اراده په عمل راوړه دوي ووِ ۳۱
چه اوّل نو یسوع هغو ته وویل چه زه تاسو ته په رښتیا وایم چه
اِجاره داران او کنچنۍ به وړاندِ له تاسو نه په بادشاهئِ دَ الله ته ورشي
۳۲ ځکه چه یُوحنّا دَ رښتیني له لارِ نه تاسي ته راغلي وه او تاسي ایمان ۳۲
پرِ رانه وړ مګر اِجاره دارانو او کنچنو په ده ایمان راوړ او تاسي چه
ولیده وروستو هم توبه ګار نه شوئِ چه په هغه مو ایمان راوړي وي
۳۳ یو بل مثال واورئِ چه دَ یوه کور خاوند وه چه دَ انګورو ۳۳
باغ ئې نهال کړ او ویاړه ئې ترِ چاپېره کړه او تلاب ئې په کښې وکنود
او برج ئې په کښې جوړ کړ او باغوانانو ته ئې وسپاره او دي بل ملک ته

۳۴ لاړ ۳۴ پس هر کله چه وقت دَ ميوي نژدې راغې نو خپل مريُونه ئې دَ
۳۵ ميوي راوړلو دَپارَ باغوانانو ته واستول ۳۵ او باغوانانو دَ ده مريُونه
۳۶ و نيول يو ئې وواهه بل ئې مړ کړ او بل ئې سنګسار کړ ۳۶ بيا ئې
نور مريُونه له اوّلو نه زيات ورواستول له هغو سره ئې هم په هغه
۳۷ شان وکړل ۳۷ آخر ئې خپل ځوي ور واستاوه ويل ئې چه دَ ځوی عزّت
۳۸ به مِ وکړِي ۳۸ مګر چه باغوانانو دَده ځوي وليد نو په خپل منځ کښ
ئې سره وويل چه دا وارث دې راځئ چه مړ ئې کړو او په ميراث دَده
۳۹ قابض شو ۳۹ نو هغه ئې ونيو له باغه ئې بهر ويوست مړ ئې کړ -
۴۰ ۴۰ پس هر کله چه دَ باغ خاوند راشي نو له هغو باغوانانو سره به څه
۴۱ وکړِي ۴۱ هغو ورته ووِ چه هغه بدان به په بد طور سره هلاک کړِي
او باغ به نورو باغوانانو ته وسپارِي چه دَ ميوي په وقت ده ته ميوه
۴۲ ورکوِي ۴۲ يسوع ورته ووِ چه په صحيفو کښ مو هيڅ کله لوستلي نه دي چه

هغه کاڼِي چه معمارانو رد کړ
هم هغه دَ کُنج سر شه
دا کار له خداوندَ وشه
او ځمونږ په سترګو کښ عجيب دي

۴۳ ۴۳ له دې سبب تاسې ته وايم چه بادشاهي دَ الله به له تاسو واخستلې
شِي او هغه قوم ته به وسپارلې شي چه ميوه دَده راوړِي
۴۴ ۴۴ او هغه څوک چه په دې کاڼِي پريوزِي ريزه ريزه به شي او په هغه
۴۵ چا چه دا کاڼي پريوزِي اوړه اوړه به ئې کړِي ۴۵ او هر کله چه سردار
کوهينانو او فريسيانو دا متالونه دَده واوريدل نو پوه شول چه دا خبري
۴۶ ځمونږ په باب کښ وايِي ۴۶ او دَده دَ نيولو نيت ئې وکړ مګر له ټوليو
وويريدل ځکه چه هغو دي نبي ګاڼه ❊

# دوه ويشتم باب

۱ ۱ او يسوع ځواب کوِنکي بيا هغو ته په متالونو کښ وويل ۲ چه دَ آسمانونو

بادشاهي دَ هغه بادشاه په شان ده چه دَ خپل ځوي دَ واده دَپارَ ئي
خورنه وکړه ۳ او خپل مريُونه ئي واستول چه بللي شوِي خــورنـي ۳
له را وبولِئ مګر هغو راتلل و نه غوښتل ۴ بيا ئي نور مريُونه ورواستول ۴
و ئي ويل چه بلليو شويو ته ووايئ چه ګوره نارَيْ مِ طيار کړي دَي
خپل غوايان او څاربه پسُونه مِ حلال کړِي دِي او هرڅه طيار دِي
خــورنـي له راځِئ ۵ مګر دوي بيپروا لاړل يَو خپل پټي ته او ۵
بل خپلي سوداګرئ ته ۶ او پاتي شويو ئي مريُونه ونيول سپک او قتل ۶
ئي کړل ۷ نو بادشاه په قهر شه خپلي لښکري ئي ورواستولي او هغه ۷
خُونيان ئي هلاک کړل او ښهر دَ هغو ئي وسه ۸ بيا ئي خپلو مريُونو ته ۸
وويل چه خــورنـه خو طيار ده مګر بللي شوِي نالايق وُو ۹ نو چارسُو ۹
دَ لارو ته لاړ شئِ او هرڅوک چه بيامومئ خــورنـي له ئي را وبولِئ
۱۰ نو هغه مريُونه لارو ته ووتل ښه او بد هرڅوک چه ئي وموندل ۱۰
سره ټول ئي کړل او دَ واده کور له ميلمنونه ډک شه ۱۱ او بادشاه ۱۱
چه دَ ميلمنو دَ ليدلو دَپارَ دننه ورغي نو هلته ئي يَو سړَي
وليد چه دَ واده جامي ئي اغوستي نه وي ۱۲ هغه ته ئي وويل ۱۲
چه اي دوسته ته څنګه بي دَ واده له جامو دلته راننوتلي يي
مګر دَ هغه خُله بنده شوه ۱۳ پس بادشاه خادمانو ته وويل چه ۱۳
لاس او پښي دَده وتړئِ او بهر په تياري کښ ئي واچوي هوري به
ژړا او دَ غاښونو چيچَل وِي ۱۴ څکه چه بللي شوِي ډير دِي مګر ۱۴
غوره شوِي لږ

۸ ۱۵ هغه وقت فَرِيسِيّان لاړل او مصلحت ئي سره وکړه چه ۱۵
دي به څنګه په خبرو کښ ونښلوو ۱۶ او خپل شاګردان ئي له ۱۶
هيروديانو سره ده ته واستول او و ئي ويل چه اي اُستاذه مونږ پوهيږو
چه ته ربښتني يي او دَ الله لاري په ربښتيا سره ښئِيي او پروا
له هيچا نه لري څکه چه ته دَ سړو مخ نه کوي ۱۷ پس مونږ ته ۱۷

ووایه چه ستا څه گمان دَي قَیصَر له جزیه ورکول روا دِي که نه-
۱۸ ۱۸ لیکن یسوع دَ دوي په شرارت پوه شه ورته وئي ویل چه اي
۱۹ ریاکارانو تاسو ما ولي ازمایئِ ۱۹ دَ جزیي قاعده راښکاره کړئِ نو دوي
۲۰ یَو دِینار ورته راوړ ۲۰ ده ورته وویل چه دا صُورت او دا ضرب دَ
۲۱ چا دي ۲۱ هغو وویل چه دَ قَیصَر نو هغو ته ئي وویل چه دَ قَیصَر
۲۲ څیزونه قَیصَر له او دَ الله څیزونه الله ته ورکوئِ ۲۲ هغو چه دا خبري
واوریدلي تعجب ئي وکړ پس دي ئي پریښود لاړل
۲۳ ۲۳ په هغه ورځ صَدُوقیان چه وائي چه قیامت نشته ورته
۲۴ راغلل او پُښتنه ئي تر وکړه ۲۴ وئي ویل چه اي اُستاذه مُوسیٰ ویلي
دِي چه که چري څوک بي اولادَ مړ شِي نو ورور دَ هغه دِ دَده ښځه
۲۵ په نکاح کړِي او نسل دِ دَخپل ورور دَپارَ ودرَوِي ۲۵ نو څمونږ په
منځ کښ اووه ورونړه وُو ورومبِي واده وکړه او مړ شه او له دي
سبَبَ چه نسل ئي نه لاره خپله ښځه ئي خپل ورور ته پریښودله هم
۲۶ دا رنګه دویم او دریم تر اووم پوري ۲۷ پس له ټولو هغه ښځه هم مړه
۲۸ شوله ۲۸ نو هغه به په قیامت کښ له هغو اووو نه دَکوم یَوه ښځه
۲۹ وِي څکه چه ټولو لرلي وه ۲۹ یسوع په ځواب کښ ورته وویل چه تاسو
۳۰ گمراه یَئ چه په صَحیفو او دَ الله په قوت نه پوهیږئِ ۳۰ څکه چه په
قیامت کښ نه څوک واده کوِي او نه ودَولي شِي بلکه په آسمان کښ دَ
۳۱ فرښتو په شان دِي ۳۱ لیکن دَ قیامت دَ مړیو په باب کښ هغه قول
۳۲ چه الله تاسو ته وفرمایه تاسو لوستلي نه دي څه؟ ۳۲ چه زه دَ
اَبْراهام الله او دَ اِسحاق الله او دَ یَعقُوب الله یم دَ مړیو الله
۳۳ نه دي بلکه دَ ژوندو دي ۳۳ او چه ټولیو دا واوریدل نو دَده تعلیم
ته حیران شول
۳۴ ۳۴ مگر چه فَرِیسِیانو واوریدل چه دَ صَدُوقیانو خولي ئي بندي
۳۵ کړي نو سره جمع شول ۳۵ او یَو له هغو نه چه عالِم دَ شرع وه

دَ اَزمايلو دَپارَ ئې پوښتنه تَرِ وکړه ۳۶ چه اي اُستاذ په توريت ۳۶
کښں کوم يَو حکم لوی دي ۳۷ نو ور ته ئې وفرِ ما چه خداوند خپل الله ۳۷
سره په خپل ټول زړه او په خپل ټول ځان او په خپل ټول
عقل مينه وکړه ۳۸ دا دي لوي او اَوَّل حکم ۳۹ او دويم دَ هغه ۳۸ ۳۹
په شان دا دي چه خپل کوانډي سره دَ خپل ځان په شان مِينه کوه
۴۰ په دي دوارو حکمونو باندِ ټول توريت او نبيان مُعَلَّق دِي ۴۰
۴۱ او چه فَرِيسِيّان سره ټول وُو نو يسوع پوښتنه تَرِ وکړه و ئې ۴۱
ويل ۴۲ چه دَ مسيح په حق کښں تاسو څه کمان کوئِ چه دَچا څوي دي ۴۲
دوي ور ته ووِ چه دَ داؤد ۴۳ نو دَه ورته ووِ چه داؤد په روح کښں ۴۳
څنګه دَه ته خداوند وائِي چه ويل ئې ۴۴ چه ۴۴

خداوند ځما خداوند ته وويل
چه ته ځما په ښي لاس کښينه
تر هغه پوري چه زه ستا دُښمنان ستا تر پښو لاندِ کيږدم

۴۵ پس چه داؤد خداوند ورته وائِي نو دي څنګه دَ هغه څوي دي ۴۵
۴۶ او هيچا دَده دَ پوي خبري دَ ځواب کولو توت نه لاره او نه له هغي
ورځي هيچا له ده نه بيا دَ هيڅ سوال کولو زړه ورتوب وکړ +

# درويشتم باب

۱ هغه وقت يسوع له ټوليو او له خپلو شاګردانو سره خبري کولي - ۱
۲ وِ ئې ويل چه کاتبان او فَرِيسِيّان دَ مُوسیٰ په کُرسَئِ باندِ کښيني ۲
۳ پس هرڅه چه هغوي تاسي ته وائِي هغه وکـــــړئِ او و ئې ۳
ساتِئِ مګر دَدوي دَ کارونو په شان مه کوئِ له دي سبَبَ چه دوي وائِي
او نه کوِي ۴ څکه چه دوي درانه او ګران پيټي تړِي او دَ سړيو په اوږو ۴
ئې ږدِي مګر نه غواړِي چه په خپله ګوته ئې وخوځِوي ۵ او خپل ټول ۵
کارونه دَ سړيو دَ ليدلو دَپارَ کوِي څکه چه خپل تعويزونه پلنوِي او دَ
خپلو جامو لمني اوږدوِي ۶ او په ميلمستيا کښں اوچت ځايونه او په ۶

۷ عبادت خانو کښې اوَّلي کرَسَيْ خوښـوِي ۷ او په بازارونو کښې سلامونه
۸ او چه له سړو نه اُستاذ د بللي شِي ۸ مګر تاسي اُستاذ بللي مه شئ ځکه
۹ چه اُستاذ ستاسو يَو دي او تاسو ټول سره ورونړه يئ ۹ او په زمکه
کښې هيچا ته پلار مه وايئ ځکه چه پلار ستاسو يَو دي يعني آسماني
۱۰ ۱۰ او تاسي هادِيان بللي مه شئ ځکه چه هادِي ستاسو يَو دي يعني
۱۱ ۱۲ مسيح ۱۱ مګر هغه چه په تاسو کښې لوي دي ستاسو خادم به وِي ۱۲ او
هر څوک چه خپل ځان هَسک کړِي کوز به کړي شِي او هر څوک چه
خپل ځان کوز کړِي هَسک به کړي شِي
۱۳ ۱۳ مـګر هئ په تاسو اي کاتبانو او فَرِيسِيّانو رياکارو ځکه چه
دَ آسمانـونـو بادشــاهي په سړيو باندِ بندوئ چه نه په خپله
ورننوزئ او نه ننوتونکيو پريږدئ چه دننـه ورشي
۱۵ ۱۵ هئ پـه تاسو اي کاتبانو او فَرِيسِيّانو رياکارو ځکه چه
په درياب او په وچه ګرزئ دَ پارَ دَدي چه يَو معتقد کړئ او چـه و
۱۶ شه نو له خپلو ځانونه ئې زيات دوه چند دَ جَهَنَم ځوي جوړوئ ۱۶ هئ
په تاسو اي ړندو لارښيونکيو چه تاسو وايئ چه که څوک به هيکل
قسم وخوري نو هيڅ نشته مګر که څوک دَ هيکل په زرو قسم وخوري
۱۷ نو اداکول (ئې لازم) دِي ۱۷ اي احمقو او ړندو کوم يَو لوي دي زر که
۱۸ هيکل چه زر مُقَدَّس کوِي ۱۸ او هر څوک چه په قربانګاه قسم وخوري
نو هيڅ نشته او هر څوک چه په نذر چه پر باندِ وِي قسم وخوري نو
۱۹ اداکول (ئې لازم) دِي ۱۹ اي ړندو کوم يَو لوي دي نذر که قربانګاه چه
۲۰ نذر مُقَدَّس کوِي ۲۰ له دي سبَبَ هغه چه په قربانګاه قسم خوري په هغه
۲۱ او هم په هر څه چه پرِ باندِ دي قسم خورِي ۲۱ او هر څوک چه په
هيکل قسم وخوري په هغه او هم په هغه چه په ده کښې اوسيدونکي
۲۲ دي قسم خوري ۲۲ او هغه څوک چه په آسمان قسم وخورِي دَ الله په
تخت او هم په هغه چه ورباندِ کښيناستونکي دي قسم خوري

۲۳ هئ پــه تاسو اي کاتبانو او فَرِيسِيّانو رياکارو چه په ويلني ۲۳
او په سيوو او په زِيرِي عُشر لَګوئِ او دَ توريت زياتي درني خبري لکه انصاف
او رحم او ايمان مو ترک کړ لازم وُو چه دا مو کړي وي او هغه
مو هم ترک کړي نه وي ۲۴ اي ړندو لارښيونکو چه ماشي چڼوئِ او اوښ ۲۴
نغرئِ
۲۵ هئ پــه تاسي اي کاتبانو او فَرِيسِيّانو رياکارو ځکه بهر دَ ۲۵
پيالي او دَ کنډول پاکوئِ ليکن دننه ئې له لُوټَ او له بدپرهيزئ ډک دي
۲۶ اي فَرِيسِي ړنده اوّل دننه دَ پيالي او دَ کنډول پاک کړه دي دَپارَچه ۲۶
باهر هم پاک شي
۲۷ هئ پــه تاسو اي کاتبانو او فَرِيسِيّانو رياکارو ځکه چه ۲۷
تاسو دَ سِپينو سپينو قبرونو په شان يئِ چه باهر ښائسته ښکاره
کيږي مګر دننه دَ مړيو له هډوکو او له هرې پليتئ ډک دي ۲۸ دا هسي ۲۸
تاسي هم په ظاهره سړيو ته صادقان ښکاريږئِ مګر دننه له رياکارئ
او له شرارتَ ډک يئِ
۲۹ هئ په تاسو اي کاتبانو او فَرِيسِيّانو رياکارو ځکه چه دَ ۲۹
نبيانو قبرونه جوړوئِ او دَ صادقانو قبرونه ښائسته کوئِ ۳۰ او وايئِ ۳۰
چه که چرې موږ دَخپلو پلرونو په ورځو کښې وي نو به دَ نبيانو
په خون کښې ورسره شريک شوي نه وُو ۳۱ دا هسي په خپلو ځانونو ۳۱
باندِ پخپله شاهدي لئِ چــه دَ نبيانو دَ قاتِلانو ځامن يئِ ۳۲ پس ۳۲
تاسو دَ خپلو پلرونو پيمانه ډکه کړئِ ۳۳ اي مارانو اي دَ منکرو بچو ۳۳
تاسو به ځنګه دَ جَهَنّم له عدالتَ وتختئِ ۳۴ له دي سبَبَ ګورئ چه ۳۴
زه نبيان او حکيمان او کاتبان تاسو ته دراستوم ځني به له هغو نه مړه
کړئِ او په صَلِيب به ئې کړئِ او ځني به په خپلو عبادتخانو کښې په کروړو
ووهئِ او ښهر په ښهر به ئې وشړئِ ۳۵ تا چه ټولي صادقي وِيني چه ۳۵
په زمکه کښې توي شوي دي په تاسو راشي له وِينو دَ هابيل صادق نه

تر وِینو دَ ذَکَرِیا اِبْنِ بارخِیا پورې چه تاسو هغه دَ هیکل او دَ قربانګاه
۳۶ په منځ کښ مړ کړ ۳۶ زه تاسي ته رښتیا وایم چه دا ټول څیزونه به
په دي پیړئ باندِ راشي
۳۷ ۳۷ اي اورشلیمَ اي اورشلیمَ وژلونکي دَ نبیانو او سنګسارکونکي
دَهغوچه تاته رالیږلي شوي دِي څو واره مِ اراده وکړه چه ستا فرزندان داسي سره جمع
کړم لکه چرګه چه خپل چرګوري تر خپلو وزرو لاندِ یو ځاي کوي او تو دِ
۳۸ نه غوښتل ۳۸ ګوره ستاسو کور ستاسو دَپارَ وِیران پرېښودلي کیږي
۳۹ ۳۹ ځکه چه زه تاسوته وایم چه پس له دي به مِ ونه وِینئ ترهغه
پورې چه ووایئ چه مبارک هغه چه دَ خداوند په نامه راتلونکي دي ❖

# څلیرِیشتم باب

۱ ۱ او یسوع له هیکل بهر راووت او چه ته نو شاګردان ئي ورته راغلل
۲ دي دَپارَ چه دَ هیکل عمارتونه ورښکاره کړي ۲ مګر دوي ته ئي په
ځواب کښ وویل چه تاسو دا ټول څیزونه نه وِینئ څه ؟ زه تاسي ته
رښتیا وایم چه دلته به یوکاڼي په بل کاڼي پرېښودي نه شي چه به
۳ و نه نړاو شي ۳ اوچه دَ زیتون په غرِه کښیناست نو شاګردان ئي
یواځي ده ته راغلل و ئي ویل چه موږ ته ووایه چه دا څیزونه به کله
۴ وشي او ستا دَ راتلو اوِدَ آخرکیدلو دَ زماني نښه به څه وي ۴ یسوع
۵ په ځواب کښ ورته دوِ ګورئ چه څوک مو ونه غولوي ۵ ځکه چه
ډیر به ځما په نوم راشي اووبه وایي چه زه هغه مسیح یم او ډیر به وغلوي
۶ ۶ اوِ چه تاسوبه جنګونه او اوازي دَ جنګونو واورئ ګورئ چه
۷ ونه ویریږئ ځکه چه دا ضرور دي مګر تر اوسه اخرت نه دي ۷ ځکه
چه قوم به په قوم او بادشاهت به په بادشاهت پورته شي او په ځنو
۸ ځایونوکښ به قحطونه او زلزلي شي ۸ مګر دا ټوله دَ دردونو شروع ده -
۹ ۹ پس له هغه به تاسوغم ته وسپاري او مړه به مو کړي اوځما دَ نوم دَپارَ
۱۰ به دَ ټولو قومونو تاسو کینه کوي شيِ ۱۰ او هغه وقت به ډیرخلق تیندک

١١ وخوري او یو بل ته به یې وسپاري او یو له بل سره به کینه وکړي ١١ او
١٢ ډیر دروغژن نبیان به پورته شي او ډیر به گمراه کړي ١٢ او د بې دینۍ خوریدو
١٣ له سببه به د ډیرو محبت سوړ شي ١٣ لیکن هغه چه تر اخره پورې زغم
١٤ وکړي خلاص به شي ١٤ او دا انجیل د بادشاهۍ به په ټولې دنیا کښ د
قومونو د گواهۍ دپاره وعظ شي پس له هغه به آخرت راشي
١٥ ١٥ پس هرگاه چه تاسو د ویرانۍ نجس څیز چه دانیال نبي یې ذکر
١٦ کړي دی په پاک ځای کښ ولاړ ووینئ [لوستونکي دې وپوهیږي] ١٦ نو هغه
١٧ وقت دې هغه چه په یهودیه کښ وي غرونو ته دې وتښتي ١٧ او هغه چه
١ په کوټه باندې وي راکوز دې نه شي د اسباب یستلو دپاره چه په کور کښ
١٨ یې وي ١٨ او هغه چه په پټي کښ وي د خپلي څڼي اخستلو دپاره
١٩ دې بیرته و نه گرزي ١٩ مگر هئ په هغو باندې چه حاملې او پیئ ورکونکې
٢٠ وي په هغو ورځو کښ ٢٠ لیکن دعا کوئ چه ستاسو تیښته په ژمي کښ
٢١ یا د سبت په ورځ و نه شي ٢١ ځکه چه په هغه وقت کښ به دارنگ
لوی مصیبت وي چه له ابتدا د عالم تر اوسه پورې نه چرې شوی دی او
٢٢ نه به وشي ٢٢ او که چرې هغه ورځې لنډې شوې نه وې نو هیڅ بشر به
هم خلاصون موندلی نه وه مگر د غورو شویو په سبب به هغه ورځې
٢٣ لنډې کړې شي ٢٣ نو که چرې څوک درته ووایي چه گوره مسیح دلې دی یا
٢٤ هلته ایمان پرې مه راوړئ ٢٤ ځکه چه دروغژن مسیحان او دروغژن نبیان
به پورته شي او لوی نښې او کرامتونه به ښکاره کړي څو چه که ممکن وي نو
٢٥ ٢٦ غوره شوي به یې هم گمراه کړي وو ٢٥ گورئ ما وړاندې خبر کړي یئ ٢٦ نو که
چرې هغه تاسي ته ووایي چه گوره په صحرا کښ دی نو بهر مه ورځئ گورئ
٢٧ په کوټو کښ دی ایمان پرې مه راوړئ ٢٧ ځکه لکه بریښنا چه له نمرخاته
نه راووزي او تر نمرپریواته پورې ځلیږي هم هسې به راتله د ځوی د انسان
٢٨ وشي ٢٨ هرچرته چه مرداره وي هغه ځای گرگسان جمع کیږي
٢٩ ٢٩ او پس له هغو ورځو د مصیبت به دستي نمر تیاره شي

او سپوږمۍ به خپله رڼا ور نه کړي او ستوري به له آسمان را پرېوزي
٣٠ او قوتونه دَ آسمانونو به وخوځيږي ٣٠ او په هغه وقت کښ به نښه
په آسمان کښ دَ انسان دَ ځوي ظاهره شي او هغه وقت به دَ زمکي
فرقي سينه ووهي او دَ انسان ځوي به له قدرته سره او له لوي جلال
٣١ سره دَ آسمان په وريځو باندِ راتلونکي وويني ٣١ او دَ شپېلۍ له لوئ
آواز سره به خپلي فرښتي واستوي او هغوي به دَده غوره کړي شوي
له څلورو طرفونو دَ آسمانونو له يوه حده تر بله حده پوري راجمع
کړي
٣٢ ٣٢ او تاسو دَ اينځر له وني نه مثال زده کړئ چه کوم وقت
چه ښاخ ئي نرم شي او پاڼي ئي توکيږي نو وپوهيږئ چه اوړي نژدي
٣٣ دي ٣٣ په دي شان تاسو هم چه دا ټول ووينئ نو پوه شئ چه
٣٤ هغه نژدي دي بلکه په دروازو باندِ دي ٣٤ زه تاسو ته رښتيا وايم
چه دا پيړئ به تيره نه شي ځو چه دا ټول ځيزونه پوره نه شي —
٣٥ ٣٥ آسمان او زمکه به لري شي مگر ځما خبري به هرگز لري نه شي
٣٦ ٣٦ ليکن دَ هغي ورځي او دَ ساعت په باب کښ هيڅوک خبر نه دي نه
٣٧ فرښتي دَ آسمانونو نه ځوي مگر يواځي پلار ٣٧ او لکه چه دَ نوح
٣٨ ورځي وي هم هسي به دَ انسان دَ ځوي راتله وي ٣٨ ځکه لکه چه
له طوفانه وړاندِ په ورځو کښ ئي خوړل اوڅښل او ودونه ئي کول او
٣٩ ودَولي شوي تر هغي ورځي پوري چه نوح به بېړئ کښ ننوت ٣٩ او تر
هغه پوري پرِ خبر نه وُو ځو چه طوفان راغي او ټول ئي يووړل هم هسي
٤٠ به راتله دَ ځوي دَ انسان وي ٤٠ هغه وقت به دوه تنه په پټي کښ
٤١ وي يَو به ونيولي او بل به پرېښودلي شي ٤١ دوه ښځي به ميچن کوي يَوه
٤٢ به ونيولي او بله به پرېښودلي شي ٤٢ پس بيدار اوسئ ځکه چه تاسي
٤٣ خبر نه يئ چه خداوند به مو په کومه ورځ راشي ٤٣ مگر په دي
وپوهيږئ چه که چري دَ کور مالک خبر وي چه غل به په کوم پهر

راشي نو بيدار به وه او په خپل كور كښ به ئي سوري كولو ته پرېښي
نه وه ۴۴ له دي سببه تاسو هم طيار اوسئ ځكه چه څوک د انسان به ۴۴
په هغه ساعت كښ راشي چه ستاسو گمان به نه وي ۴۵ پس كوم يو دي ۴۵
هغه امانت‌دار او هوښيار نوكر چه خاوند ئي په خپلي خيلخاني باندي مقرر
كړي چه دي وقت په وقت سره هغو ته خوراک وركړي ۴۶ مبارک ۴۶
هغه نوكر دي چه خاوند ئي راشي او دي په هغه كار كښ مشغول
وموي ۴۷ زه تاسو ته رښتيا وايم چه هغه به په خپلو ټولو مالونو باندي ۴۷
مختار كړي ۴۸ مگر كه هغه شرير مريي په خپل زړه كښ ووايي چه ۴۸
خاوند مي ډيل كوي ۴۹ او د خپلو همخدمتو په وهلو باندي لگيا شي او ۴۹
له مستانو سره به خوري او څښي ۵۰ نو خاوند د هغه مريي به په ۵۰
هغه ورځ چه دده اميد نه وي او په هغه ساعت چه پري نه پوهيږي
راشي ۵۱ او دي به دوه ټكړي كړي او حصه دده به له رياكارانو سره ۵۱
مقرره كړي چه هوري به ژړل او د غاښونو چيچل وي +

## پنځه ويشتم باب

۱ هغه وقت به بادشاهي د آسمانونو د لسو پيغلو په مشابه كړي شي چه ۱
خپل مشعلونه ئي واخستل او د زوم مخي ته بهر ورغللي ۲ له هغو نه ۲
پنځه احمقي او پنځه هوښياري وي ۳ هغه چه احمقي وي خپل مشعلونه ۳
ئي واخستل او تيل ئي له ځان سره يو نه وړل ۴ مگر هغو هوښيارانو ۴
له خپلو مشعلو سره تيل په لوښو كښ واخستل ۵ او چه زوم ډيل ۵
وكړ نو هغه ټولي پرنا يوري او ووډي شوي ۶ او نيمه شپه غوغا پورته ۶
شوه چه گورئ زوم مخي ته ئي ورووزئ ۷ هغه وقت هغه ټولي پيغلي ۷
پاځيدلي خپل مشعلونه ئي تازه كړل ۸ نو هغو احمقو هوښيارانو ته وويل ۸
چه له خپلو تيلو نه مونږ ته راكړئ ځكه چه مشعلونه مو مړه كيږي -
۹ نو هوښيارانو په ځواب كښ ورته وويل چه هيچري نه چه ځمونږ ۹
او ستاسي دپاره بس نه شي غوره دا ده چه تاسو خرڅوونكو ته لاړي

١٠ شئِ او دَخپل خان دَپارَ ئي وپيرئِ ١٠ نو چه دوي دَ پيرودلو دَپارَ لاړي
زوم راغي او هغه چه طياري وي له ده سره دَ واده ډوډئِ ته ننوتي
١١ او دروازه پوري شوه ١١ پس له هغه نوري پيغلي هم راغلي و ئي ويل چه
١٢ اي خداوندَ اي خداوندَ مونږ ته دروازه لري کړه ١٢ مګره ده په ځواب کښ
١٣ ور ته وويل چه زه رښتيا در ته وايم چه تاسو نه پيژنم ١٣ له دي
سببَ بيدار اوسئِ ځکه چه تاسو له هغي ورځي او له هغه ساعتَ خبر نه يئ
١٤ ١٤ ځکه چه يَو سفر کونکي سړي خپل مريونه راوبلل او
١٥ خپل مالونه ئي دوي ته وسپارل ١٥ يوَه ته پنځه قِنطاره او بل ته
دوه او بل ته يَو هر يوَه ته ئي دَ خپل لياقت په برابرئِ ورکړل او دي
١٦ په خپل سفر روان شه ١٦ پس هغه چه پنځه قِنطاره ئي موندلي وُو
١٧ سمدستي لاړ سوداګري ئي پرِ وکړه پنځه نور قِنطاره ئي وګټل ١٧ او هم
دارنګه هغه چه دوه قِنطاره ئي موندلي وُو دوه نوري ئي پرِ حاصل کړل
١٨ ١٨ مګر هغه چه يَو قِنطار ئي موندلي وَه لاړ شه زمکه ئي وکنوده دَخپل
١٩ خاوند زر ئي پټ کړه ١٩ ليکن پس له ډيري مُدي خاوند دَ هغو مريُونو
٢٠ راغي له دوي نه ئي حساب واخست ٢٠ او هغه چه پنځه قِنطاره ئي موندلي
وُو راغي او پنځه قِنطاره ئي نور راوړل و ئي ويل چه اي خاوندَ تا ما
ته پنځه قِنطاره سپارلي وُو ګوره چه پنځه قِنطاره مِ نور حاصل کړي
٢١ دي ٢١ خاوند ئي ورته وويل چه شاباش اي نيکه او ايمان داره مريَي
ته چه په لږو څيزونو کښ اَمين شوي زه به دِ په ډيرو څيزونو باندِ
٢٢ ودروم دَ خپل خاوند په خوښي کښ ننوزه ٢٢ بيا هغه چه دوه قِنطارَ
ئي موندلي وُو راغي و ئي ويل چه اي خاوندَ تا ما ته دوه قِنطارَ سپارلي
٢٣ وُو ګوره چه دوه نور مِ حاصل کړي دي ٢٣ خاوند ئي ورته وويل چه
شاباش اي نيکه او ايمان دارَ مريَي ته په لږو څيزونو اَمين شوي زه به دِ په ډيرو
٢٤ ودروم دَ خپل خاوند په خوښي کښ ننوزه ٢٤ بيا هغه هم چه يَو
قِنطار ئي موندلي وه راغي و ئي ويل چه اي خاوندَ ته ما و پيژندلي

چه ته تُند سړې يي ريبې له هغه ځايه چه هلته دِ کرِلي نه وِي او جمع
کوي له هغه ځايه چه دِ غوړولي نه وِي ٢٥ زه وويريدلم نو لاړم او ستا ٢٥
قِنْطارم په مزکه کښې پټ کړ گوره خپل مال دِ موجود دي ٢٦ مګر خاوند ٢٦
ئي په ځواب کښې ورته وُوِ چه اي شرِيره او سُسته مرِيَ ته پوهيږې
چه زه ريبم له هغه ځايَ چه کرِلي مِ نه وِي او ټولوم له هغه ځايَ چه
غوړولي مِ نه وِي ٢٧ نو مناسب دا وُو چه تا زما زر صَرافانو ته ورکړي ٢٧
وي نو خپل زر به مې له سودَ سره اخستِي وُو ٢٨ له دي سبَبَ هغه ٢٨
قِنْطار تړِ واخلئِ او هغه ته چه لس قِنْطاره ورځه دِي ور ئي کړئ -
٢٩ ځکه هر هغه چا ځه چه شته ور به کړي شِي او زيات به ئي کړي شِي ٢٩
مګر هر هغه چا ځه چه نشته نو هغه چه ورځه دِي هم تړِوا به خستلي
شِي ٣٠ او دا بي‌نفعي مرِيَ په بهرَنۍ تياري کښې وغورزوئِ هغه ځاي به ٣٠
ژړل او دَ غاښونو چيچل وِي

٣١ هرکاه چه ځوي دَ انسان په خپلي لويَئِ سره راشِي او ټولي ٣١
فرښتي ورسره نو هغه وقت به دَ خپلي لويَئِ په تخت باندِ کښيني ٣٢ او ٣٢
ټول قومونه به دَده دَ وړاندِ جمع شِي او دي به يَو له بل دَاسي جدا
کړِي لکه شپُون ګډي له بزو نه بيلوِي ٣٣ او ګډي به په خپل ښِي ٣٣
لاس او بزي به کينړِ ته ودَروِي ٣٤ بادشاه به هغو ته چه په ښِي لاس ٣٤
ئي دِي ووايِي چه راشئِ اي زما دَ پلار مبارکو او هغه بادشاهِي چه
له بنياده دَ جهانَ ستاسو دَپارَ طيار شوې دَه په وراثت کښې ئي واخلئِ
٣٥ ځکه چه زه وږي وم او تاسو خوراک راکړ او تږي وم تاسو را باندِ ٣٥
وڅکولي مسافر وم تاسو کورته بوتلم ٣٦ بربنډ وم تاسو را واغوستلي ٣٦
ناجوړ وم او تاسو مِ پوښتنه ولړه په قيد کښې وم او تاسو ما ته
راغلئِ ٣٧ نو صادقان به په ځواب کښې ورته ووايِي چه اي خداوندَ کله ٣٧
موته وږيَ وليدلي چه مو وخوړولي يا تږيَ چه درباندِ مو وڅکولي ٣٨ کله ٣٨
موته مسافر وليدلي چه کورته مو بوتلي يا بربند چه مو درواغوستلي

٣٩ ٤٠ ٣٩ کله مو ته ناجوړیا په قید کښ ولیدلي او مونږ درغلو ٤٠ نو بادشاه به
هغو ته په ځواب کښ ووايي چه زه تاسو ته رښتیا وایم چه هرګاه چه تاسو
٤١ یَو له دغو وړوکیو ځما له وروڼو سره وکړل نو ما سره مو وکړل ٤١ بیا به هغو
ته چه په کیڼ لاس ئي دِي ووايي چه اي ملعونو له ما نه لاړ شئِ هغه
ابدِي اور ته چه دَ اِبلِیس او دَ هغه دَ پرِیښتو دَپارَ طیار کړي شوی دَي
٤٢ ٤٢ ځکه چه زه وږيَ وم رابانډِ ومو نه خوړولم او تږي وم رابانډِ مو ونه څښلي
٤٣ ٤٣ مسافروم کورته مو بو نه تلم برښنډ وم او جامي مو را وا نه غوستل
٤٤ رنځور او په قید کښ وم تاسو مِ پوښتنه ونه کړه ٤٤ بیا به هغه ځواب
ورکړِي او و به وايِي چه اي خداوندَ کله مو ته وږي یا تږيَ یا مسافر یا
٤٥ برښنډ یا ناجوړیا په قید کښ ولیدلي او ستا خدمت مو ونه کړ ٤٥ نو
به دي په ځواب کښ ورته ووايِي چه زه تاسو ته رښتیا وایم چه هرګاه
چه تاسو له دي وړوکیو نه له یَوه سره ونه کړل نو له ما سره مو
ونه کړل او هغه به ابدِي عذاب ته لاړ شي او صادقان به په ابدِي
ژوندانه کښ ❖

## شپږویشتم باب

١ ١ داسي وشوه چه یسوع دا ټولي خبري تمامي کړلي نو خپلو شاګردانو ته ئي
٢ ووېل ٢ چه تاسو پوهیږئِ چه دوه ورځي پس به فسحَ وِي او ځوي دَ
٣ انسان به دَ مَصْلُوبولو دَپارَ وسپارلي شِي ٣ نو سردار کوهینان او دَ
قوم بزرګان دَ قِیافا په دِیوانخاني کښ چه سردار کوهین وه سره ټول
٤ شول ٤ او جرګه ئي وکړه چه یسوع په څه چل سره ونیسِي او مړ ئي
٥ کړِي ٥ مګر دوي ووېل چه دا به په اختر کښ ونه شِي هسي نه چه
په خلقو کښ شور پورته شِي
٦ ٧ ٦ او چه یسوع په بَیْتِعِینْا دَ شَمْعُوْن کوړِي په کورکښ وه ٧ نو یوَه
ښځه له قِیمت بها عَطْرو دَ رَخامو له ډبلِي سره وِرته راغله او چه دَيَ په
٨ خوراک ناست وه نو په سر ئي ورتوي کړل ٨ مګر چه شاګردانو ئي دا ولیدل

نو ډير خپه شول و يُ ويل چه ولي دا زيان وشه ۹ څکه ۹
چه دا په ډيرڅه خرخ شوِي وُو او غريبانو ته ورکړي شوِي وو
۱۰ مگر يسوع په دي پوه شه ورته و يُ ويل چه ولي دي ښځي ته ۱۰
خپگان ورکويِ څکه چه دي خو له ما سره نيک کار کړي دي ۱۱ څکه چه ۱۱
غريبان تل له خپل ځان سره لريِ مگر ما مدام نه لريِ ۱۲ څکه دي ۱۲
ښځي چه دا عطرَ زما په جُسي واچول دا يُ زما دَ ښخولو دَپارَ کړي دِي
۱۳ زه تاسو ته رښتيا وايم چه په تمامه دُنيا کښ هر ځاي چه دا ۱۳
انجيل وعظ کړي شيِ دا هم چه دي ښځي وکړه دَدي دَ يادگاريِ
دَپارَ به ويلي شيِ
۱۴ پس يَو له هغو دوو لسو چه يهودا اِسقَريُوطِي باله شه ۱۴
سردار کوهينانو ته ورغي ۱۵ او و يُ ويل چه ما ته به څه راکويِ چه ۱۵
زه هغه تاسو ته وسپارم نو هغو له ده سره دَ ديرشو روپيو اقرار وکړ
۱٦ او ده له هغه وقت نه قابو غوښت چه دي ور وسپارِي ۱٦
۱۷ او دَ فَطِيرو په ورښيِ ورځ شاگردان يسوع ته راغلل او ۱۷
و يُ ويل چه ته چرته غواړيِ چه مونږ ستا دَپارَ فسح طياره کړو چه و يُ خوري ۱۸ او ۱۸
ده وويل چه ښهر ته فلانِي سړِي له لاړ شيُ ور ته ووايُ چه اُستاذ
وايِي چه زما وقت نژدي شه زه به له خپلو شاگردانو سره تاکره فسح
وکړم ۱۹ او شاگردانو يُ لکه چه يسوع ورته ويلِي وُو هسي يُ وکړل ۱۹
او فسح يُ تيار کړه ۲۰ چه ماښام شه نو دي له دوولسو شاگردانو ۲۰
سره کښيناست ۲۱ او چه خوړل يُ نو و يُ ويل چه زه تاسو ته رښتيا وايم ۲۱
چه يَو له تاسو به ما وسپارِي ۲۲ او هغوي ډير غمجن شول او هر يَو ۲۲
له هغو نه وويل چه اي خداوندَ زه يم څه ؟ ۲۳ ده په ځواب کښ ۲۳
ورته وويل هغه څوک چه له ما سره لاس په تالگي کښ ډوبوي هم
هغه به ما وسپارِي ۲۴ ځوي دَ انسان خو کوځ کوِي لکه چه دَ هغه ۲۴
په حق کښ ليکلِي شوي دِي مگر هيُ په هغه سړِي چه ځوي دَ

انسان دَ ده له لاسَ سپارلي كيږي كه هغه سړي پيدا شوي نه وي نو دَ هغه
۲۵ دَپارَ به ښه وه ۲۵ نو يَهُودا چه دَده سپارونكي وه په ځواب كښې ئې
ورته وويل چه اي اُستاذَ زه يم خه؟ ده ته ئې وويل چه تا ويلي دي
۲۶ ۲۶ اوچه خوړل ئې نو يسوع ډوډئ واخسته او بركت ئې پرِ وغوښت
او ماته ئې كړه شاګردانو ته ئې وركړه او وئې ويل چه واخلئ وخورئ دا
۲۷ ده هغه جُسه خما ۲۷ او پياله ئې واخسته او شكر ئې وكه او هغو ته ئې وركړه
۲۸ ورته وئې ويل چه تاسو ټول له دي نه وڅكئ ۲۸ څكه چه دا هغه خما دَ عهد
۲۹ وينې دي چه دَ ډيرو دَ ګناهونو دَ معافئ دَپارَ توئيږي ۲۹ زه تاسو ته وايم
چه دَ انګورو شيره به بيا و نه څكم تر هغي ورځي پوري چه له تاسو
سره دَخپل پلار په بادشاهئ كښې هغه نوي و نه څكم
۳۰ ۳۰ او دَ ثنا غزل ئې ووايه دَ زَيتُون غره ته بهر لاړل۔
۳۱ ۳۱ هغه وقت يسوع دوي ته وويل چه په دي شپي كښې به تاسو
ټول خما په سبَبْ ټيندك وخورئ څكه چه دا ليكلي دي چه زه به شپُون
۳۲ وهم او دَ كنډكَ ګډُوري به تار په تار شي ۳۲ ليكن زه به پس له خپل
۳۳ ژوندي پورته كيدلو له تاسو وړاندِ جَلِيل ته لاړ شم ۳۳ پَطرَسْ
په ځواب كښې ورته وويل چه اګر كه ټول ستا په سبَبْ ټيندك وخوري
۳۴ ليكن زه به هيڅري ټيندك و نه خورم ۳۴ يسوع ورته وويل چه زه
تا ته رښتيا وايم چه په دي شپه به پخوا دَ چرګ له بانګَ ته له ماته
۳۵ دري څله انكار وكړي ۳۵ پَطرَسْ ورته وويل چه اګر كه خما مرګ له
تا سره ضروروشي خو هم له تا نه به منكر نه شم هم په دي شان ئې
ټولو شاګردانو وويل
۳۶ ۳۶ هغه وقت يسوع له دوي سره يو ځاي ته چه ګتسِيمِنِي نوم ئې
وه ورغي خپلو شاګردانو ته ئې وويل چه تاسو دلي كښينئ تر هغه
۳۷ پوري چه زه هغه ځاي ته لاړ شم او دُعا وغواړم ۳۷ پَطرَسْ او هغه
دوه ځامن دَ زُبدي ئې واخستل په غم او په ډير خپګان ولګيده۔

٣٨ نو دوي ته ئي وويل چه ځما ځان تر مرګ پوري بيحده غمزده دَي تاسو ٣٨
دلي پاتي شَئِ او له ما سره بيدار اوسيئِ ٣٩ او لږ وړاندِ لاړ پرمخ پريوت ٣٩
او په دُعاكښ ئي وويل چه اي ځما پلارَ كه ممكن وِي نو دا پياله دِ له ما نه
تيره شِي مګر نه دا هسي لكه چه زه ئي غواړم بلكه دا هسي لكه چه ته-
٤٠ او چه شاګردانو ته راغي نو دوي ئي وُوده وموندل پِطرُسْ ته ئي وويل چه ٤٠
يَو ساعت له ما سره بيدار پاتي كيدلي نه شَئِ څه؟ ٤١ بيدار شَئِ او دُعا وغواړئِ ٤١
چه په ازمائښت كښ پرِي نه وزئِ رُوح خو طيار مګر جِسم ضعيف دَي ٤٢ بيا ٤٢
دوباره لاړ او دُعا ئي وغوښتله ويل ئي چه اي ځما پلارَ كه چرِي دا ممكنه نه ده
چه دا پياله بي ځما له څښلو تيره نه شِي نو هم ستا مرضِي دِ وشِي ٤٣ او چه ٤٣
راغي هغوي ئي بيا وُوده وموندل ځكه چه ستركِي دَدوي دروُني وي ٤٤ او هغو ٤٤
ئي پرېښودل بيا لاړ او دريم ځله ئي دَعا وغوښتله بيا ئي هم په هغو خبرو
سره دُعا وغوښتله ٤٥ بيا شاګردانو ته راغي او ورته ئي وويل چه اوس وُوده ٤٥
اوسئِ او آرام وكړئِ ګورئِ هغه ساعت رانژدي شه چه ځوي دَ انسان
دَ ګناهګارانو لاسونو ته سپارلي كيږي ٤٦ پورته شَئِ چه لاړ شو ګورئِ ٤٦
هغه ځما سپارونكي نژدي دَي

٤٧ او چه ده لا دا ويل نو ګوره چه يَهُوداَ چه يَو له هغو دوولسو نه وه ٤٧
او له ده سره يَو لوي ټولي له تورو او له لَرګو سره دَ سردار كوهينانو او
دَ سپين ږيرو دَ قوم له لوري ورته راغي ٤٨ نو هغه چه دَده سپارونكي وه ٤٨
هغوي ته ئي نښه وركړي وه او ورته ئي وويل چه هغه څوک چه زه ئي ښكل
كړم هم هغه دَي و ئي نِيسَئِ ٤٩ او دستي يسوع ته راغي ورته و ئي ٤٩
وِ چه اي اُستاذَ سلام او ښكل ئي كړ ٥٠ نو يسوع ورته وويل اي ملګرِيَ ٥٠
چه څه له راغلي يي هغه وكړه پس هغوي وړاندِ راغلل او لاس ئي يسوع
ته واچاوه و ئي نيوه ٥١ او ګوره يَو له هغو چه له يسوع سره وه لاس ٥١
ئي اوږد كه خپله توره ئي وويسته دَ بزرګ كوهن مريي ئي
وواهه او غوږ ئي والوزاوه ٥٢ او يسوع ورته وويل چه خپله توره په ٥٢

تيکِي کښِ کړه ځکه چه هغوي واړه چه تُوره وباسِي پـه تُـوره
٥٣ سره به هلاک شِي ٥٣ يا ته نه پوهيږِي څه؟ چه زه اوس نه توانيږم چه له
خپله پلاره وغواړم چه دیِ به زيات له دولسو فوځونو دَ پرښتو را ته
٥٤ حاضر کړي ٥٤ مگر صَحِيفِي به څنګه پوره شِي چه دا رنګه کيدل ضرور
٥٥ دِي ٥٥ هغه ساعت يسوع ټولِي ته ووِيل چه تاسو لکه په غله له تُورو
او له لَوړو سره څما دَ نِيولُو دَپارَ بهر راغلي يئِ څه؟ زه خو هره
ورځ له تاسو سره په هيکل کښ کښيناستم او تعليم مِ درکاوه
٥٦ او تاسو ونه نِيولم ٥٦ ليکن دا ټول وشول تا چه صَحِيفي دَ نبيانو پوره
شِي هغه وقت ټولو شاگردانو دي پرِيښود وتښتيدل
٥٧ ٥٧ او هغه چا چه يسوع يئ نِيولي وه دَ کوهينانو سـردار
قَيـافَا ته يئِ ورِ وست چه هلته کاتبان او سپين ږيري ټول سره
٥٨ جمع وُو ٥٨ او پَطرَس لري لرِي دَکوهين سردار تر محل پوري ورپسِي
ته او ور ننه وت له نوکرانو سره کښيناست تا چه آخر حال يئ ووينِي
٥٩ ٥٩ نو سـردار کوهينانو او ټول جرگيوالو په يسوع باندِ دَ دروغو
٦٠ شاهديِ لټولي دي دَپارَ چه دي ووژنِي ٦٠ مگر نه يئ مونډلي اگر که ډير
٦١ دروغژن شاهدان راغلل آخر دوه تنَ راغلل ٦١ او و يئ ويل چه ده ويلي
دِي چه زه توانيږم چه دَ الله هيکل وِيران کړم او په دريو ورځو کښ به
٦٢ يئ بيا جوړ کړم ٦٢ نو سردار کوهِن پاڅيده ورته و يئ ويل چه هيڅ ځواب
٦٣ نه راکوي څه؟ دا څه دِي چه دوي په تا باندِ گواهِي لِي ٦٣ مگر يسوع پټه
خوله وه بيا سردار کوهِن ورته ووِيل چه زه په ژوندي الله تا ته قسم
٦٤ درکوم چه مونږ ته دا ووايه چه ته هغه مسيح دَ الله ځوي يئ څه؟ ٦٤ يسوع ورته
ووِيل چه تا ويلي دِي مگر زه هم تاسو ته وايم چه ځوي دَ انسان به پس له
دي تاسو دَ قُدرَت په ښي لوري ناست او دَ آسمان په وريځو باندِ
٦٥ راتلونکَي ووينئ ٦٥ په هغه وقت سردار کوهِن خپلي جامي څيري کړي
او و يئ ويل چه کُفرُ يئ ووايه مونږ ته دَ نورو شاهدانو څه حاجت دِي

کوريِ اوس مو دَده کُفر واوريده ٦٦ تاسو څه کمان کويِ هغو په ځواب ٦٦
کښ وويل چه دَ مرگ لايق دي ٦٧ بيا هغو دَده په مخ وتوکل او په ٦٧
سوکونو يُ وواهه او ځنو په څپيړو وواهه و يُ ويل ٦٨ چه اي مسيحَ ٦٨
مونږ ته په نبوت سره راوښيه چه چا ووهلي
٦٩ پطرس بهر په غولي کښ ناست وه او يَوه وينځه ورته راغله ٦٩
و يُ ويل چه ته هم له يسوع جَليلي سره وي ٧٠ مگر ده دَ ټولو دَ وړاندِ ٧٠
انکار وکه و يُ ويل چه زه نه پوهيږم چه ته څه وايي ٧١ او چه بهر ډيوړيُ ٧١
ته راووت نو بلي وينځي وليد او هغو ته چه هلته وُو و يُ ويل چه
دا هم له يسوع ناصري سره وه ٧٢ او ده بيا قسم وخوړ انکار يُ وکه ٧٢
چه زه دغه سړي نه پيژنم ٧٣ او پس له لږي مُدي هغوي چه هلته ولاړ ٧٣
وُو پطرس ته راغلل او و يُ ويل چه بي شک ته هم له هغو يُ ځکه
چه ستا ژبه تا ښکاره کوي ٧٤ پس په لَعنت کولو او په قسم خوړلو ٧٤
لگيا شه چه هغه سړي زه نه پيژنم او هم په هغه ساعت چرگ بانگ
ووايه ٧٥ او پطرس ته دَ يسوع خبري په ياد راغلي چه ده ويلي وي چه ٧٥
دَ چرگ دَ بانگ ويلو نه به وړاندِ دري واره له ما نه انکار وکړي او دي بهر
ووت په زار زار يُ وژړل ✣

# اوه ويشتم باب

١ ليکن چه صَبا شه نو ټولو سردار کوهينانو او سپين ږيرو دَ قوم دَ ١
يسوع په حق کښ يُ مصلحت وکړ چه مړ يُ کړو ٢ او دي يُ وتاړه ٢
بو يُ ته او پيلاطُس حاکم ته يُ وسپاره
٣ نو يَهُودا چه دَده سپارونکي وه چه دا يُ وليدل چه ٣
په ده حکم وشه نو پښيمانه شه او هغه ديرش روپيِ يُ سردار
کوهينانو او سپين ږيرو ته بيرته ورووړي ٤ او و يُ ويل چه گناه مِ وکړه ٤
چه بي گناه مِ خُون ته وسپاره هغو وويل چه څمونږ پري څه ته پوهيږي
٥ او هغه روپيِ يُ په هيکل کښ وغورزولي روان شه او لاړ خپل ٥

۶ ځان يې په تيزندۍ کړ ۶ ليکن چه سردار دَ کوهينانو هغه روپۍ واخستې نو
۷ وَ يې ويل چه دا په بَيتُ الْمَال کښ اچول روا نه دِي ځکه چه دَ خُون بها ده ۷ نو
دوي مصلحت سره وکړ چه په هغو يې دَ کُلال پټې دَ مُسافِرانو دَ ښخولو دَپارَ
۸ وپېرود ۸ له دي سببَ هغه پټې تر نَنِ ورځي پورې دَ خُون پټې باله شي-
۹ ۹ پس هغه چه يَرمِيا پيغمبر ويلي وُو پوره شول ويل يې چه
هغو هغه ديرش روپۍ واخستې چه دَده قيمت کړي شوي قيمت وه
چه ځنو له بني‌اسرائيلو دَده قيمت مقرّر کړ
۱۰ ۱۰ او هغه يې دَ کُلال په پټي ورکړې
لکه چه خداوند ما ته حکم راکړ
۱۱ ۱۱ يسوع دَ حاکم په مخ کښ ولاړ وه نو حاکم ور نه پوښتنه وکړه
وَ يې ويل چه ته دَ يَهُوديانو بادشاه يې څه؟ يسوع ور ته وويل چه ته
۱۲ وايې ۱۲ او هرکله چه سردار کوهينانو او سپين‌ږيرو په ده اِلْزام لګاوه
۱۳ نو ده هيڅ ځواب ور نه کړ ۱۳ پيلاطُسْ ور ته وويل چه ته نه اورې چه
۱۴ هغوې څنګه شاهدۍ په تا کوي ۱۴ هغه ته يې هم دَ يَوه لفظ ځواب
۱۵ ور نه که تر دې حده چه حاکم ډير تعجب وکه ۱۵ او په اختر دَحاکم دستُور
۱۶ داوه چه يَو قيدي چه به يې غوښت هغوې ته به يې خلاصاوه ۱۶ هغه وقت
۱۷ يو مشهور قيدِي چه برابا نُوم يې وه لاره يې ۱۷ نو چه دوي سره ټول شول
پس پيلاطُسْ ور ته وويل چه تاسو کوم يَو غواړۍ چه زه يې تاسو ته
۱۸ خلاص کړم برابا که يسوع چه مسيح باله شي ۱۸ ځکه چه دي پوه
۱۹ شوي وه چه دَ کينې له سببَ يې وسپاره ۱۹ او چه دَ حکومت په تخت
کښيناست نو ښځي يې ور واستاوه وَ يې ويل چه په دې صادق سړي هيڅ غرض
۲۰ مه لره ځکه چه ما نن په خوب کښ دَده په سببْ ډير رنځ موندلي دي ۲۰ ليکن
سردار کوهينانو او سپين‌ږيرو هغوې ولمشَوَل چه برابا وغواړي او يسوع
۲۱ هلاک کړي ۲۱ او حاکم دوي ته ځواب ورکه وَ يې ويل چه له دې دوو نه
۲۲ کوم يو غواړۍ چه تاسي ته يې پرېږدم وَ يې ويل چه برابا ۲۲ پيلاطُسْ

ور ته ووِیل چه پس له یسوع سره چه مسیح باله شي څه وکړم هغوي
ټولو ووِیل چه مَصلُوب دِ شي ۲۳ هغه ورته ووِیل چه ولي څه ۲۳
بد ئې کړي دي هغوي لا زیات شور ولګاوه و ئې ویل چه مَصلُوب دِ شي
۲۴ چه پیلاطُسْ ولیده چه هیڅ نه کیږي بلکه فساد زیاتیږي نو اوبه ئې ۲۴
واخستې او دَ خلقو په مخ کښ ئې لاسونه ووینځل او و ئې ویل چه زه
دَدي صادق سړي له خُونَ پاک یم تاسو وګورئ ۲۵ او ټولو خلقو ځواب ۲۵
ورکه و ئې ویل چه دَده خُون دِ په مونږ او ځمونږ په اولاد وي ۲۶ نو ده ۲۶
براباد دوي ته پرینښود او یسوع ئې په کوړو وواهه او و ئې سپارد چه
مَصلُوب دِ شي
۲۷ نو دَ حاکم سپاهیانُ یسوع دربار ته بوتَ او خپل ټولي ۲۷
ئې په ده باندِ جمع کړه ۲۸ او جامي ئې تري ویستلي قرمزي چوغه ئې ور ۲۸
واغوستله ۲۹ او له اغزو تاج ئې ووده ور په سر ئې کړ او په ښي لاس کښ ۲۹
ئې دورمه ورکړه او دَده په مخ کښ زنګنُونه و لګول ټوقي ئې ور پوري
کولي او و ئې ویل چه اي بادشاه دَ یهُودیانو سلام ۳۰ او په ده باندِ ئې ۳۰
توک کړل او دورمه ئې تري واخسته په سر ئې وواهه ۳۱ او چه ۳۱
ټوقي ئې پرِ پوري وکړي نو چوغه ئې تري ویستله دَده خپلي جامي ئې ورواغوستلي
صَلیب کولو ته ئې بهر بوت
۳۲ او چه دوي بهر راغلل نو یوَ قیریني سړي چه شمعُون نوم ئې وه ۳۲
و ئې موند او دَده دَ صَلیب دَ وړلو دَپارَ ئې په بیګارِي ونیو ۳۳ او چه هغه ۳۳
ځاي ته چه ګلګتا یعني دَ کړیو ځاي باله شي ورسیدل ۳۴ نو له تریخو ۳۴
سره ګډ شراب ئې ده ته دَ څښلو دَپارَ ورکړل او چه و ئې څکل نو و ئې
نه څښل ۳۵ او چه دي ئې په صَلیب کړ نو دَده په جامو ئې هِسک ۳۵
واچاوه سره و ئې ویشلي ۳۶ او هغه ځاي ورته کښیناستل څارنه ئې کوله ۳۶
۳۷ او دَده تقصیرنامه ئې ولیکله دَده په سر دَپاسَ ئې ولګوله چه دا ۳۷
دي یسوع بادشاه دَ یهُودیانو ۳۸ او له ده سره دوه غله هم په صَلیب ۳۸

٣٩ شُوِي وُو يَو ئُ په ښِي لاس بل ئُ په كِينږ لاس ٣٩ او تيريدونكيو
كُفرَ ورته وايـه او سرونه ئُ خوځول ٤٠ او دا ئُ ويل اي دَ هيكل
وبرانونكيَ او په دريِ ورځي جوړونكيَ نو خپل ځان خلاص كړه كه ته
٤١ ابن الله يي له صَلِيبَ راكوز شـه ٤١ او هم دارنگه سردار كوهينانو
٤٢ له كاتبانو او له سپين ږيريو سره ټوقي وكړي و ئُ ويل ٤٢ چه نور ئُ
خلاص كړل او خپل ځان خلاصولي نه شِي كه چري دي دَ اسرائيلو
بادشاه دي نو اوس دِ له صَلِيبَ راكوز شِي پس مونږ به په ده بانْدِ
٤٣ ايمان راوړو ٤٣ ده په الله تَوَكَّلْ وكه نو كه چري هغه دي غواړِي
٤٤ خو اوس دِ ئُ خلاص كړِي- ده خو به ويل چه زه دَ الله ځوي يم ٤٤ او
هغو غلو چه له ده سره مصْلوُب شوِي وُو هم دا رنگ بنكنځل ورته وكړل
٤٥ ٤٥ او له شپږم ساعته تر نهم ساعته پوري په ټوله زمكه
٤٦ تياره شوه ٤٦ او نهم ساعت ته نژدي يسوع په لوي آواز ناري وكړي و
ئُ ويل چه اَيلي اَيلي لامه شَبَقْتَنِيْ يعني اي خما الله اي خما الله ولي
٤٧ دِ پريښودلم ٤٧ او ځنو له هغو چه هوري ولاړ وُو چه دا ئُ واوريدل و
٤٨ ئُ ويل چه دا سړي اِلياس ته ناري وَهي ٤٨ او يَو له هغو نه دستي په دَو لاړ اسفنج
ئُ واخست له سركي نه ئُ ډک كړ په ډُرمـه ئُ كيښود په ده ئُ وڅښله
٤٩ ٤٩ او نورو وويل چه پري ئُ ږده چه مونږ وگورو چه اِلْيَاس دَ ده دَ خلاصولو
٥٠ دَپارَ راځِي كه نه ٥٠ يسوع چه بيا په لوي آواز سره ناره وكړه نو رُوْح ئُ
٥١ وسپاره ٥١ او گوره چه دَ هيكل پرده له سره تر پايه پوري دوه ټوټي شوه
٥٢ او زمكه په زلزله شوه او پرښي وچاودلي ٥٢ او قَبْرُوْنه واز شول او
٥٣ ډيري جُسّي دَ پاكانو چه وودي شوِي وي پورته شوي ٥٣ او پس دَ ده له
٥٤ پاڅيدلو له قَبْرُوْنونه ووتلي او پاک ښهر ته لاړي و ډيروته ښكاره شولي ٥٤ مگر چه صوبدار او
هغو چه دَ يسوع ساتنه ئُ كوله چه هغه زلزله او هغه څيزونه چه پيښ
شوِي وُو و ئُ ليدل نو ډير وويريدل او و ئُ ويل چه په رښتيا سره دا
٥٥ دَ الله ځوي وه ٥٥ او هلته ډيري ښځي وي چه له جَليل نه په يسوع پسي

زده دَ خدمت کولو دَپارَ راتلي له لري به ئې نظر ورته کاوه ٥٦ او په ٥٦
هغو کښې مریمه مجدلیّه او مریمه دَ یعقوب او دَ یوسی مور او دَ زبدي
دَ ځامنو مور وه

٥٧ هرکله چه نماښام شه نو دَ ارمتي یو دولتمند سړي چه یوسف ٥٧
نوم ئې وه او هم دَ یسوع شاګرد وه راغي ٥٨ پلاطُس ته ورغي او دَ یسوع ٥٨
جُسّه ئې وغوښته پلاطُس حکم وکه چه ورکړي شي ٥٩ نو یوسف جُسّه ٥٩
راواخسته په پاک کتان کښې ئې ونغښته ٦٠ او په خپل نوي قبر کښې چه په ٦٠
ږبنه کښې کنودلي وه کېښود او یولوي کاڼي ئې دَ قبر دروازي ته ورغړاوه
او لاړ ٦١ او مریمه مجدلیّه او بله مریمه هلته قبر ته مخامخ ناستي وي ٦٢ او ٦١ ٦٢
په صبا چه پس له ورځي دَ تیارئ سردار کوهینان او فریسیّان پلاطُس
ته سره ورټول شول ٦٣ و ئې ویل چه صاحب موږ ته یاد دي چه هغي ٦٣
ټګ هغه وقت چه ژوندي وه ویل ئې چه زه به پس له دریو ورځو ژوندي
پورته کړي شم ٦٤ نو حکم وکړه چه تر دریمې ورځي پوري دَ قبر مضبوطي وشي ٦٤
هسي نه چه شاګردان ئې راشي او په غلا ئې یوسي او خلقو ته ووایي
چه له مړیو نه ژوندي پورته کړي شوي دي نو آخره ګمراهي به ئې له اوّلي نه
بده شي ٦٥ پیلاطُس هغو ته وویل چه تاسو پهره داران لرئ لاړ شئ ٦٥
او څنګه چه پوهیږئ مضبوطي ئې وکړئ ٦٦ نو دوي لاړل او دَ قبر مضبوطي ٦٦
ئې وکړله او په کاڼي ئې مهر ولګاوه پهره داران ورسره وُو ❊

## اته ویشتم باب

١ او پس له سَبَتَ په وقت دَ صحر په اوّل ورځ دَ هفتي کښې مریمه مجدلیه او هغه ١
بله مریمه دَ قبر دَ لیدلو دَپارَ راغلي ٢ او کوره لویه زلزله شوه ځکه چه یوه فرښته ٢
دَ خداوند له آسمانَ راښکته شوه او راغله هغه کاڼي ئې ورغړاوه پرې کښیناسته
٣ دَ هغي څهره دَ برق په شان وه او جامي ئې لکه واوري سپیني وي ٤ دَ دي ٣ ٤
له دَهشتَ هغه سپاهیان ولړزېدل او دَ مړیو په شان شول ٥ هغي ٥
فرښتي هغو ښځو ته په ځواب کښې ووِ چه تاسو مه ویریږئ ځکه چه زه

٦ پوهیږم چه تاسو مصلوب شوي یسوع لټوئ ٦ هغه دلي نشته ځکه چه ژوندی
پورته کړي شوي دي لکه چه ده ویلي وُو راشئ وګورئ هغه ځاي چه
٧ خداوند په کښ پروت وه ٧ او ژر لاړي شئ شاګردان ئې خبر کړئ چه هغه
له مړو نه ژوندي پورته شه او ګورئ دي له تاسو نه وړاندِ جلیل ته ورځي
٨ هوري به دي وویني ګورئ ما تاسو ته وویل ٨ او دوي ژر له قبر په ډیره ویره
٩ او په خوشحالئ سره لاړي او د شاګردانو د خبرولو د پاره وزغلیدي ٩ او ګوره
یسوع له دوي سره مخامخ شه او وئې ویل چه اَلسَّلامُ عَلَیکُمْ هغوي ورغلي د ده
١٠ پښي ئې ونیوي او سجده ئې ور ته وکړه ١٠ نو یسوع دوي ته وویل چه مه
ویریږئ لاړي شئ څما وروڼو خبر کړئ چه جلیل ته لاړ شي هوري به م ووینی
١١ ١١ دوي چه تللي نو ګوره څو تنه پهره داران ښهر ته راغلل او سردار
١٢ کوهینان ئې له هرڅه نه چه پېښ شوي وُو خبر کړل ١٢ پس هغوي له سپین ږیرو
١٣ سره ټول شول مصلحت ئې سره وکړ ډیري روپئ ئې سپاهیانو له ورکړي ١٣ او و
ئې ویل چه تاسو ووایئ چه د شپي په وقت چه مونږ اوده وُو شاګردان ئې
١٤ راغلل او هغه ئې په غلا یوووړ ١٤ نو که چري دا د حاکم تر غوږو ورسي
١٥ پس مونږ به ئې پوه کړو او تاسو به بي خطري کړو ١٥ او هغو روپئ واخستي
او په څه شان چه ئې ور وښوول و ئې کړل او دا خبره تر نن ورځي
پوري د یهودیانو په منځ کښ مشهوره ده
١٦ ١٦ او هغه یوولس شاګردان په جلیل کښ هغه غره ته چه یسوع ور ته
١٧ حکم کړي وه لاړل ١٧ او چه دي ئې ولید نو سجدي ئې ور ته وکړي مګر څنو شک
١٨ وکړه ١٨ یسوع ور ته راغي او دوي ته ئې وویل چه ټول اختیار د آسمان او د زمکي
١٩ ما ته راکړي شوي دي ١٩ پس تاسو لاړ شئ او ټول قومونه شاګردان کړئ او هغوي
٢٠ ته د پلار او د ځوي او د رُوحُ القُدس په نامه بپتسما ورکوئ ٢٠ او
هغوي ته تعلیم ورکړئ چه په هغو ټولو خبرو چه ما ئې تاسو ته حکم درکړي دي
ساتنه وکړي او ګورئ زه به مدام تر تمامیدلو د زماني پوري له تاسو سره یم ❊

# اِنجيل دَ مُقدّس مَرقَسْ

## اوّل باب

۱ شروع دَ انجيل دَ يسوع مسيح اِبنُ‌الله ۲ لکه چه دَ اَشَعِيا پيغمبر په کتاب ۱ ۲
کښ ليکلي دِي چه
گوره زه خپل استاځي ستا دَ مخ دَ وړاندِ در اَستوم
چه لار ستا تياره کړي
۳ په بيابان کښ آواز دَ يَوه ناري وهونکي ۳
چه لار دَ خداوند طياره کړئِ
سَرکُونه دَده سم کړئِ
۴ يوحنّا بپتسما ورکونکي په بيابان کښ دَ گناهونو په بخښني دَ توبي دَ ۴
بپتسما وعظ ئي کاوه ۵ او ټول ملک دَ يَهُوديي او ټول اوسيدونکي دَ ۵
اورشليم ده ته راووتل او په خپلو گناهونو اقرار کونکي دَ اَرْدَنْ په درياب
کښ ئي له ده نه بپتسما موندله ۶ او يُوحنّا دَ اُوښانو دَ وړيو جامي اغوستي ۶
وي او دَ څرمني کمربند ئي تړملا وه او ملخان او دَ بيابان شات ئي خوړل -
۷ او وعظ ئي کاوه و ئي ويل چه په ما پسي يَو زيات قوّتناک له ما نه راځي ۷
زه لايق دَدي نه يم چه ټيټ شم او تسمه دَ څپلو دَده پرانزم ۸ ماخوتاسو ۸
ته په اوبو بپتسما درکړه مگر هغه به تاسو ته په رُوحُ الْقُدُسْ بپتسما
درکړي
۹ او په هغو ورځو کښ داسي وشول چه يسوع دَ جَلِيل له ناصِرتَ راغي ۹
او له يوحنّا نه ئي په اَردَنْ کښ بپتسما بياموندہ ۱۰ او هغه دم چه له اوبو ۱۰
راووت نو آسمانونه ئي چاودلي او رُوح دَ کوتري په شان په ده راکوزيدونکي
وليد ۱۱ او يَو آواز له آسمانونو وشه چه ته ځما محبوب ځوي يي زه په تا ډير ۱۱
خوشحال يَم ۱۲ او فيِ الحالَ رُوح دي بيابان ته ويوست ۱۳ او هغه په بيابان کښ ۱۲ ۱۳

ترڅلوېښتو ورځو له شیطانَ و ازمایلی شه او له درنده ګانو سره وه او پرېښتو
ئي خدمت کاوه
۱۴ ۱۴ مګر پس له سپارلو دَ یُوحَنّا یسوع جَلِیل ته راغي دَ الله دَ اِنجِیل
۱۵ وعظ ئي کاوه ۱۵ او ویل ئي چه وقت پوره شوي دي او بادشاهي دَ الله نژدې
راغله توبه کړئِ او په اِنجِیل ایمان راوړئِ
۱۶ ۱۶ او چه یسوع دَ جلیل دَ دریاب په غاړه ګرزېده نو
شَمعُوَن او اَندَرِیاس ورور دَ شَمعُوَن ئي ولیدل چه په دریاب کښ ئي جال
۱۷ اچاوه ځکه چه ماهي ګیر وُو ۱۷ یسوع هغو ته وویل چه په ما پسي راځئِ او
۱۸ زه به مو دَ سړو ښکاریان کړم ۱۸ هغو هغه دم خپل جالونه پرېښودل او په
۱۹ ده پسي روان شول ۱۹ او چه له هغه ځايَ لږ څه وړاندِ تیر شول نو یَعقُوب
دَ زَبدِي ځوي او ورور دَده یُوحَنّا ئي ولیدل چه دوي هم په بېړئِ کښ خپل
۲۰ جالونه جوړول ۲۰ دستي ئي راوبلل او هغو خپل پلار زَبدِي له مزدورانو
سره په بېړئِ کښ پرېښود په ده پسي روان شول
۲۱ ۲۱ پس دوي په کَفرَناحُوم کښ داخل شول او دستي دَ سَبَتْ په ورځ
۲۲ په عبادت خانې کښ ننوت تعلیم ئي ورکړ ۲۲ او هغوي دَده تعلیم ته حیران
شول له دي سبَبَ چه دوي ته ئي دَ اختیار لرونکي په شان تعلیم ورکاوه نه دَ
۲۳ کاتبانو غوندِ ۲۳ او دستي دَ هغو په عبادت خانې کښ یَو سړي وه چه ناپاک
۲۴ رُوح په کښ وه او هغه ناري وکړي ۲۴ و ئي ویل چه اي یسوع نَصرانِي ځمونږ
له تا سره څه کار دي ګوندِ ځمونږ دَ هلاکولو دَپارَ راغلي یي څه؟ زه دِ پیژنم
۲۵ چه ته څوک یي دَ الله قُدُّوس ۲۵ یسوع هغه وتراټه و ئي ویل چه
۲۶ خوله وِنسه او له ده نه بهر راووزه ۲۶ نو ناپاک رُوح هغه ومروړه او په
۲۷ لوي آواز سره ئي ناري وکړي او له هغه نه بهر راووت ۲۷ او هغوي ټول
حیران شول یَو له بلَ ئي سوال کاوه ویل ئي چه داڅه دي نوي تعلیم دَي څه؟
۲۸ له اختیار سره په ناپاکو اَرواحُونو هم حکم کوِي او هغوي ئي مَنِي ۲۸ او دستي
دَده شهرت په چاپېر وطن دَ جَلِیل خور شه

۲۹ او دوي چه له عبادت‌خاني نه بهر ووتل له يَعْقوب او له ۲۹
يُوحَنّا سره سم دَلاسَ دَ شَمْعُوْن او دَ اَنْدَرْياس کره ورغلل ۳۰ او خوابني دَ ۳۰
شَمْعُوْن تَبْجَنه پرته وَه هغوي زر دي پرِ خبر کړ ۳۱ نو دي ورغي لاس ۳۱
دَ هغي ئي ونيو پورته ئي کړه او تبَه پريښوه دَ دوي په خدمت مشغوله
شوه

۳۲ په ښماښام چه نمر پريوتي وه نو ټول رنځوران او ديو ۳۲
نيولي ئي ده ته راوستل ۳۳ او ټول ښهر په دروازه جمع شوي وه ۳۴ او ۳۳ ۳۴
ده ډيرو ته چه په رنګارنګ رنځونو اخته وُو شفا ئي ورکړله او ډير ديوان
ئي وويستل او ديوان ئي خبري کولو ته نه پريښول ځکه چه هغو دي پېژانده

۳۵ په لوي سحر چه لا شپه وَه دي پورته شه او بهر ووت او يَو ۳۵
وِيران ځاي ته لاړ او هوري ئي دُعا وغوښتله ۳۶ او شَمْعُوْن او هغوي ۳۶
چه ور سره وُو ورپسي شول ۳۷ او دي ئي بياموند نو ور ته وئي ويل ۳۷
چه ټول دِ لټوِي ۳۸ هغو ته ئي وويل چه بل چرته نژدي ښهرونو ته لاړ ۳۸
شُو چه هلته هم وعظ وکړم ځکه چه زه دَدي دَپارَ راوتلي يم ۳۹ او په ۳۹
ټول جَلِيل کښ دَ هغو په عبادت‌خانو کښ وعظ کونکي او ديوان ويستونکي
لاړ

۴۰ او يَو کوړي ور ته راغي زاري ئي ورته وکړه او په ښنو ئي پريوت ۴۰
وئي ويل چه ته غواړي نو توانيږي چه پاک مِ کړي ۴۱ او زړه سوي ئي پرِ وکه ۴۱
او خپل لاس ئي ور وغزاوه او ور ئي وړ ذرته وئي ويل غواړم پاک شه
۴۲ هغه دم کوړ ور نه لاړ او پاک شه ۴۳ او تاکيد ئي پرِ وکړ او زر ۴۲ ۴۳
ئي روان کړ ۴۴ او ورته وئي ويل چه گوره هيڅا ته څه مه وايه مګر لاړ شه خپل ۴۴
ځان کوهِن ته ښکاره کړه او دَ خپلي پاکيُ دَپارَ هغه څيزونه چه مُوسیٰ ئي
حکم کړي دي نذر ئي کړه چه په هغوي شاهدِي شي ۴۵ ليکن هغه چه بهر ۴۵
لاړ په ډير وعظ کولو او دَدي خبري په مشهورولو لګيا شه په هسي شان
چه پس له هغه يسوع ښهر ته په ښکاره ننوتلیَ نه شه مګر بهر په وِيرانو

ځایونو کښې وه او له هره لوري ور ته راتلل ❊

# دویم باب

۱ آ او څو ورځې پس بیا کفر نحوم ته راغې چــه واوریدې شول چه په کور
۲ کښې دي ۲ نو ډیر خلق جمعه شول چه د هغو د پاره ځاي نه وُو اونه چاپیره
۳ د دروازې او هغوی ته ئې کلام وایه ۳ او دوي راغلل یو شل چه په
۴ څلورو ئې اخستي وه ده ته ئې راوړ ۴ اوچه د تولي له سبب ورنژدي کیدلي
نه شول نو دوي د هغه بام هغه ځاي چه دي په کښې وه وسپړود سوري ئې کړ
۵ هغه کټ چه شل پر پروت وه کوز ئې ورخوړند کړه ۵ او یسوع چه د هغو
ایمان ولید نو شل ته ئې وویل چه اي فرزنده ستا گناهونه معاف شول -
۶ ۶ مگر ځني کاتبان چه هلته ناست وُو په خپلو زړونو کښې ئې خیال وکړ -
۷ ۷ چه ولي دا سړي دا رنگه خبري کوي دا کفر وایي بې له یو یعني اَللهُ څوک گناه
۸ عفوه کولي شي ۸ اوچه یسوع دستي په خپل رُوح سره معلومه کړه چه دوي
په خپلو زړونو کښې داسي خیال کوي نو هغوته ئې وویل چه تاسو په خپلو
۹ زړونو کښې څله دا رنگه خیالونه کوئ ۹ کمه زیاته اسانه ده شل ته ویل چه
۱۰ گناهونه د معاف شول اوکه دا چه پورته شه خپل کټ واخله اوگرزه ۱۰ مگر چه
تاسو وپوهیږئ چه ابنِ آدم په زمکه کښې اختیار د گناهونه عفو کولو
۱۱ لري پس شل ته ئې وویل ۱۱ چه تا ته وایم پورته شه اوخپل کټ واخله خپل
۱۲ کور ته ځه ۱۲ نو پاڅیده او دستي ئې خپل کټ واخست د تولو په مخ کښې بهر
لاړ په هسي شان چه تول حیران شول او د اَللهُ تمجید ئې وکه وئې ویل
چه هیڅکله مو دا رنگه لیدلي نه وُو

۱۳ ۱۳ دي بیا د دریاب غاړي ته ووت او تول خلق ور ته راتلل او هغو
۱۴ ته ئې تعلیم ورکاوه ۱۴ اوچه تیریده نو د اَلفِیا ځوي لیوي د محصول په چوتره
باندې ناست ولید هغه ته ئې وویل چه په ما پسي راځه هغه پاڅیده او په
۱۵ ده پسي روان شه ۱۵ او داسي وشوه چه دي د هغه په کور کښې په خوراک
باندې کښیناست نو ډیر اجاره داران او گناهکاران له یسوع او د ده له شاگردانو

سره کښيناستل څکه چه هغوي ډير وُو او هم په ده. پسي راغِلي وُو ١٦ او چه ١٦
کاتبانو دَ فَرِيسِيَانو دي وليد چه له گُناه کارانو او له اِجاره دارانو سره خوراک
خورِي نو دَده شاگردانو ته ئې وويل چه دي له اِجاره دارانو او له گُناه کارانو
سرهِ خورِي او څښِي ١٧ يسوع چه دا واوريدل نو ور ته و ئې ويل چه هغوي چه ١٧
تندرست دِي دَ طِبيب اِحتِياج نه لرِي بلکه رنځوران زه نه دَ صادقانو بلکه دَ
گُناه کارانو دَ بللو دَپارَ راغلي يم

١٨ دَ يُوحَنّا شاگردانو او فَرِيسِيَانو روژي نِيولِي نو هغوي ور ته راغلل ١٨
ده ته ئې وويل چه وَلې دَ يُوحَنّا شاگردان او دَ فَرِيسِيَانو شاگردان روژي
نِيسِي مگر ستا شاگردان ئې نه نِيسِي ١٩ يسوع ور ته وويل چه دَ واده دَکور هلکان ١٩
تر هغه پورِي چه زُوم ورسره وِي روژه نِيولِي شِي څه ؟ څوچه زُوم ورسره
وِي نو روژه نِيولِي نه شِي ٢٠ مگر هغه ورځ به راشِي چه زُوم به له دوي وِنِيولِي ٢٠
شِي په هغو ورځو کښ به روژه وِنِيسِي ٢١ هيڅوک دَ شړلي خامتا ټکړه په ٢١
زړي جامي نه گنڼِي اوکه نه وِي نو هغه چه اچولِي ده له هغه نه اخلِي نوي مر.
له زړي نه او شليدل ئې زيات شِي ٢٢ او هيڅوک نوِي شراب په زړو مشکو ٢٢
کښ نه اچوِي اوکه نه نو شراب به مشکونه وشلوِي نو شراب خرابيږِي او
مشکونه هم ليکن نوِي شراب په نوِيو مشکونو کښ اچوِي

٢٣ او داسي وشول چه دي دَ سَبَت په ورځ دَ پټو په منځ کښ تيريده ٢٣
شاگردان ئې پـه تلو کښ دَ وږيو په شوکولو لگيا شول ٢٤ فَرِيسِيَانو ور ته ٢٤
وويل چه گوره ولي دَ سَبَّت په ورځ هغه کوِي چه ناروا دِي ٢٥ ده ور ته ٢٥
وويل چه تاسو هيڅکله لوستِي نه دِي هغه څه چه داؤد وکړه چه دَي او
هغوي چه ورسره وُو محتاج او وږي شول ٢٦ نو څنگه دَ اَللّٰه په کور کښ ٢٦
چه اَبيَاتار سردار کوهن وه ننوتل او دَ نذر ډوډي ئې وخوړلي چه دَ
هغو خوراک سِوا له کوهينانو روا نه وه او هغوي ته چه ورسره وُو هم ئې
ورکړي ٢٧ دا ئې هم ور ته وويل چه سَبَّت دَ سړو دَپارَ جوړشوي وه نه سړِي ٢٧
دَ سَبَّت دَپارَ ٢٨ پس اِبنِ آدم خاوند دَ سَبَّت هم دَي + ٢٨

# دريم باب

۱ ۱ او دي بيا عبادت‌خاني ته ننوت او هلته يَو سړي وه چه لاس ئي وچ شوي
۲ وه ۲ او هغوي ده ته غِلي وُو چه دي هغه له دَ سَبّت په ورځ کښ شفا ورکړي
۳ تاچه نالش پرِ وکړِي ۳ او ده هغه وچ‌لاسِي ته ووِيل چه په مينځ کښ ودريږه
۴ ۴ او هغو ته ئي ووِيل چه دَ سَبّت په ورځ نيکي کول روا دِي که بدِي کول
۵ ځان خلاصول که هلاکول ئي؟ دوي چپ شول ۵ او دي دَ هغو دَ سخت دلَيْ له
سبَبَ غمجن شه په قهر سره ئي ټولو ته چاپير نظر وکړ هغه سړِي ته ئي
۶ ووِيل چه خپل لاس وغزوه او هغه وغزاوه او لاس ئي جوړ شه ۶ نو
فَرِيسيّان بهر لاړل او دستي ئي له هيروديانو سره دَده په برِخلاف ئي
مصلَحت وکړ چه دي څنګه هلاک کړِي
۷ ۷ يسوع له خپلو شاګردانو سره درياب ته پښتنه شه او له جَلِيلَ يَو لوي
۸ ټولي په ده پسي روان شه ۸ او له يَهُوديي او له اورشَلِيمَ او له اَدُوميي
او له پوري خوا دَ اَرْدَنَ او له کيرچاپير دَ صُور او دَ صَيدا هم يَو لوي ټولي
۹ چه ذَده ټول کارونه ئي واوريدل ورته راغلل ۹ او ده خپلو شاګردانو ته
ووِيل چه يَوه وړوکي کِشتيَ دَ هغه دَپارَ تياره کړيِ دَ ټولي په سبَبْ هسي
۱۰ نه چه هغه ئي راګير کړِي ۱۰ ځکه چه ډيرو ته ئي صحت ورکړِي وه تردي حده چه
۱۱ هرڅومره چه رنځونه ئي لرل په ده دَ مسه کولو دَپارَ پريوتل ۱۱ ناپاکو
اَرْواحُونو به چه دي ليده نو په مخ کښ به ئي پريوتل او په نارو سره به ئي
۱۲ وِيل چه ته اِبْنُ اللّهُ يي ۱۲ او ده په هغو ډير تاکيد وکړ وِيل ئي چه مشهور
ئي نه کړِي
۱۳ ۱۳ او په غره دَپاسَ وختِ هرڅوک چه ئي غوښت هغه به ئي باله
۱۴ او هغه وله ورغلل ۱۴ او ده دولس تنه مقرر کړل چه له ده سره وِي او
۱۵ ۱۶ وعظ کولو له ئي واستوِي ۱۵ چه هغوي اِختيار لرِي چه ديوان وباسِي ۱۶ په
۱۷ شَمْعُون ئي نوُم پَطْرُس کيښود ۱۷ او په يَعْقُوب ځوي دَ زَبْدِي او په يُوحَنّا ورو

۱۸ دَ يَعقُوب يِ بُوانَرجِيس يعني ځامن دَ رَعَد نُوم کيښود ۱۸ او اَندَرياس او
فَليپُس او بَرتَلمِي او مَتي او تُوما او يَعقُوب ځوي دَ اَلفِيَ او تَدِي او
۱۹ شَمعُون کَنعَاني ۱۹ او يَهُودا اِسکَريُوطِي چه دي يِ وسپاره
۲۰ ۲۰ او دي يَو کور ته راغي بيا دومره خلق جمع شول چه دوي
۲۱ ډوډيِ هم خوړلي نه شوه ۲۱ او هر کله چه دوستانو يِ دا واوريدل نو
دَده دَ نيولو دَپارَ بهر ووتل ځکه چه هغو ويل چه دي بيخوده شوي دي-
۲۲ ۲۲ او کاتبان چه له اورشَليمَ کوز شوي وُو وئِي ويل چه دي بَعلزبُول لري
۲۳ او دي ديوانو دَ سردارِ په مدد وباسي ۲۳ ده هغوي ځان ته
راوبلل او په مثالونو کښ يِ ورته وويل چه څرنګه شيطان شيطان يستلي
۲۴ شي؟ ۲۴ او که چري يو بادشاهت په خپلوکښ سره بي اِتفَاقَ شي نو هغه
۲۵ بادشاهي قايمه پاتي کيدلي نه شي ۲۵ او که چري يوکور په خپل مينځ کښ
۲۶ سره بي اِتفَاقَ شي نو هغه کور قايم پاتي کيدلي نه شي ۲۶ که چري شيطان
دَخپل ځان په خلاف پورته شي او بي اِتفَاقَ شي نو قايم پاتي کيدلي
۲۷ نه شي بلکه آخر ۲۷ هيڅوک دَ زوراور کره ورننوتلي نه شي چه مال يِ لوټ
کړي مګر چه ورمبيَ هغه زوراور وتړي نو پس له هغه به کور دَده لوټ کړي
۲۸ ۲۸ زه تاسو ته رښتيا وايم چه ټول ګناهونه به بني آدم ته وبخښلي شي او
۲۹ کُفرُونه يِ چه ورسره به کُفرَ وايي ۲۹ مګر هغه څوک چه په رُوحُ القُدُس
۳۰ کُفرَ ووايي دَ هغه معافي هيڅري نشته بلکه دَ ابدي ګناه خطاکار دي ۳۰ ځکه
چه ويلي يِ وُو چه دي ناپاک رُوح لري
۳۱ ۳۱ او مور او ورونړه دَده راغلل او بهر ودريدل څوک يِ دَ بللو
۳۲ دَپارَ ور واستاوه ۳۲ او ټولي له ده نه چاپيره ناست وه ورته وئِي ويل چه
۳۳ کوره ستا مور او ستا ورونړه دِ بهر پښتنه کوي ۳۳ هغو ته يِ په ځواب کښ وويل
۳۴ چه مورِ مِ او ورونړه مِ څوک دِي؟ ۳۴ هغو ته چه دَده نه چاپيره ناست وُو
۳۵ نظر يِ وکه وئِي ويل چه کوره زما مور او زما ورونړه ۳۵ ځکه چه هر څوک چه دَ الله
مرضي وکړي هم هغه زما ورور او خور او مور دِي *

# څلورم باب

۱ ۱ او بیا د دریاب په غاړه په تعلیم کولو لګیا شه او لوی ټولي ده څخه جمع
شه په هسي شان چه په بېړئ وختو او په دریاب کښ (په بېړئ) کښېناست
۲ او هغه واړه ټولي د دریاب په غاړه په وچه وه ۲ او هغو ته ئي په متلونو
۳ کښ ډېر څه وښوول او په خپل تعلیم کښ ئي دوي ته وویل ۳ چه واورئ
۴ ګوره کروندګي د کرلو د پاره بهر لاړ شه ۴ او داسي وشوه چه د ده په کرلو کښ
۵ څه په لاري کښ پرېوت او مرغان راغلل هغه ئي **ونغړد** ۵ او څه په کاڼېزه
زمکه کښ پرېوت او چه هلته ډېري خاوري نه وي نو زر وټوکېده ځکه چه
۶ زمکي ژوروالي نه لاره ۶ او چه نمر وختو نو هغه وسو او چه ولي ئي نه لرلي
۷ نو وچ شه ۷ او څه په اغزو کښ پرېوت چه اغزي لوی شول نو هغه ئي خپه
۸ کړ او بار ئي را نه وړ ۸ او نور په ښې زمکي کښ پرېوت او بار ئي راوړ وټوکېده
۹ او لوی شه نو یو په دېرش او یو په شپېته او یو په سل ئي را وړل ۹ او وئي
وویل چه هر څوک چه غوږونه د اورېدو لري وا دي وري
۱۰ ۱۰ او چه ګوښي شه نو هغوي چه ور سره وو سره له دوولسو تنو له
۱۱ ده ئي د هغو متلو پوښتنه وکړه ۱۱ او ده هغو ته وویل چه تاسو ته راز
د بادشاهئ د الله درکړي شوي دي مګر هغو ته چه بهر دي ټول څيزونه په
۱۲ متلونو کښ دي ۱۲ تا چه په لیدلو سره ئي ګوري او ونه وینې او په اورېدلو
۱۳ سره ئي اوري او پوه نه شي هسي نه چه وګرزي او وبخښلي شي ۱۳ او ورته
وئي وي چه تاسو په دې متل نه پوهېږئ څه؟ نو په ټولو متلو به څنګه
۱۴ ۱۵ پوه شئ ۱۴ کروندګي کلام کري ۱۵ او دا هغه دي چه د لاري په څنګ وي چه
هلته کلام کرلي شي او چه دوي واورېده نو دستي شیطان په هغو راځي
۱۶ او کرلي شوي کلام له هغو نه یوسي ۱۶ او دا هم هغوي دي چه په کاڼېزو کښ
۱۷ کرلي شوي دي چه کلام واوري او دستي ئي په خوښئ سره قبول کړي ۱۷ او
چه په خپل ځان کښ بېخ نه لري بلکه د لږي سودي وي نو که د هغه کلام په

١٨ سبب څه غم یا دبي ورپېښ شي نو زر تیندک وخوري ۱۸ او هغه چه دَ اغزو
١٩ په مینځ کښې وکرل شول هغه څوک دي چه کلام ئي واورېده ۱۹ او فکرونه
دَ دُنیا او فریب دَ دولت او خواهش دَ نورو څیزونو په کښې ننوزي هغه کلام
٢٠ خپه کړي او هغه بي باره کیږي ۲۰ او هغه چه په ښه زمکه کښې کرلي وه هغه
څوک دي چه کلام واوري قبول ئي کړي او بار راوړي یو په دیرش یو په
شپیته یو په سل
٢١ ۲۱ او هغو ته ئي ووېل چه ډیوه دَ دي دَپارَ راوري ده څه؟ چه
تر اوړي یا تر کټ لاندِ کیښودلي شي او په ډیوټ باندِ نه شي کیښودلي څه؟
٢٢ ۲۲ ځکه چه هیڅ پټ نشته چه ښکاره به نه شي او هیڅ پنهم نشته مګر
٢٣ ٢٤ په ظهور به راشي ۲۳ که څوک غوږونه دَ اوریدو لري وا دِ وري ۲۴ او دوي ته
ئي ووېل چه خبردار چه تاسو څه اوریِ په هغه اوړي چه تاسو ئي پیمانه
کوئِ تاسو ته به پیمانه کړي شي او تاسو ته به زیات ددکړي شي
٢٥ ۲۵ ځکه هغه څوک چه لري ور به کړي شي او هغه څوک چه نه لرِي هغه
چه ورشخه دِي هم به تري واخستي شي
٢٦ ۲۶ او وئي ویل چه بادشاهي دَ اَللّٰه داسي ده لکه چه یوسړي په
٢٧ زمکه کښې تخم ولوني ۲۷ او دي شپه اوورځ ووده کیږي او پاځیږي او هغه
٢٨ تخم په خپله ټوکیږي او لوئیږي لکه چه دي نه پوهیږي ۲۸ زمکه په خپله
بار راوړي ورمبي وابنه بیا وږي بیا پوره دانه په وږي
٢٩ کښې ۲۹ او چه بار ئي ورسیږي نو لور پرِ ولګوي ځکه چه دَ لَو وقت ئي
رسیدلي دَي
٣٠ ۳۰ بیا ئي ووېل چه مونږ بادشاهي دَ اَللّٰه له څه څیز سره مشابه
٣١ کړو یا په کوم یَوه متل ئي بیان وکړو؟ ۳۱ هغه دَ اَوړي دَ داني په شان
دي چه هغه وقت چه په زمکه کښې کرلي شي نو له ټولو تخمو دَ زمکي نه
٣٢ وړوکي ده ۳۲ او چه وکرلي شوه نو وټوکیږي له ټولو سبزو نه لوئیږي او لوي
ښاخونه وکړي تر دي حده پوري چه دَ هوا مرغان دَ دي تر سوري لاندِ جاله کولي شي

۳۳ ۳۳ او ده له هغو سره په همسي رنګ ډېرو متلونو سره چه اوريدلي ي
۳۴ شول کلام بيان کاوه ۳۴ او بې له متل ئي له هغو سره خبري نه کولي او
په ګوښه کښ ئي خپلو شاګردانو ته دَ ټولو خبرو معنی بيان کولي
۳۵ ۳۵ او هغه ورځ چه نماښام شه نو دوي ته ئي وويل چه راځئ چه
۳۶ پوري خوا ته لاړ شو ۳۶ پس هغه ټولي ئي پرېښود او دي ئي هغه شان لکه چه
۳۷ په بېړئ کښ وه واخست او نوري بېړئ هم ور سره وي ۳۷ نس لوي طوفان
۳۸ دَ باد راغي او موجونه په بېړئ باندِ تر دي حده لګيدل چه بېړئ ډکيده ۳۸ او
دي دَ ورستو ورستنه په بالښت باندِ اوده وه مګر هغوي بيدار که او ور ته
۳۹ و ئي ويل چه اي اُستاذه ستا هيڅ فکر نشته چه مونږ هلاکيږو ۳۹ پس دي
وِيښ شه باد ئي وټراټه او درياب ته ئي وويل چپ شه او په قرار شه نو باد
۴۰ ودرېده او ډېره قراري شوه ۴۰ او هغو ته ئي وويل چه تاسو څله ويرېږئ
۴۱ لا تر اوسه ايمان نه لرئ څه ؟ ۴۱ او هغه ډېر وويرېدل او يَو بل ته ئي سره
وويل چه باري دا څوک دي چه باد او درياب ئي هم مَني ؟ ✤

## پنځم باب

۱ ۱ او هغوي په پوري غاړي دَ درياب دَ جراسينو ملک ته راغلل ۲ او هر کله
چه له بېړئ نه راکوز شه نو سمدستي يَو سړي چه ناپاک رُوح په کښ
۳ وه له قبرونو نه په ده باندِ پيښ شه ۳ او هغه په قبرونو کښ استوګه
۴ کوله او هيچا په زنځير سره هم تړلي نه شه ۴ ځکه چه هغه ډېر ځله په
ځولَنو او په زنځيرونو تړلي شوي وه مګر زنځيرونه به ئي وشلول او ځولاني به
۵ ئي ټوټي ټوټي کړي او هيچا دَ هغه دَ تابع کولو طاقت نه لاره ۵ او مدام شپه
او ورځ به په قبرونو او په غرونو کښ وه ناري به ئي وهلي او خپل ځان به
۶ ئي په کاڼو ژوبل کاوه ۶ او چه يسوع ئي له لري نه وليد نو په ځغلو ور ته راغي
۷ او سجده ئي ور ته وکړه ۷ او په لوړ آواز سره ئي ناره وکړه و ئي ويل چه اي
يسوعَ دَ اَللّٰه تعالیٰ ځويه ځما له تا سره څه کار دي زه تا ته په اَللّٰه سوګند
۸ درکوم چه ما مه ربړوي ۸ ځکه چه ده ور ته ويل چه اي ناپاکه روحه له دي

سړي نه بهر راووزه ۹ بيا ده له هغه پوښتنه وکړه چه ستا نوم څه دي ۹
هغه ورته ووې چه زما نوم لجيون دي چه موږ ډير يو ۱۰ او ده ته ني ۱۰
ډيري زاريِ وکړي چه له ملک مو ونه باسي ۱۱ او په هغه ځاي دَ غره په ۱۱
ډډه کښې يَوه ډيره لويه کله دَ سرکوزو څريدله ۱۲ نو ده ته يُ زاري وکړه وِ يي ۱۲
ويل چه هغو سرکوزو ته مو واستاوه چه په هغو کښې ننوزو ۱۳ پس هغو ۱۳
ته يُ اِجازت ورکړ او ناپاک رُوحُونه بهر لاړل په سرکوزو کښې ننوتل او
هغي کلي له لوړي نه درياب ته ذوکړ هغه قريب دوه زره وُو چه په درياب
کښې غرق شول ۱۴ او څرونکي دَ هغو ونښتيدل او ښهر او ملک ته يُ خبر ۱۴
ورساوه او هغوي دَ دي حال دَ ليدلو دَپارَ بهر را ووتل ۱۵ هر کله چه يسوع ۱۵
ته راغلل او هغه پليت رُوح نيولي چه لجيون ني لرل ناست جامي ني اغوستي او هوښيار
يُ وليد نو ووېريدل ۱۶ او هغو چه وليد شغه چه په پليت رُوح نيولي او په ۱۶
سرکوزو باندِ تير شول دوي ته يُ بيان کړ ۱۷ پس هغوي ده ته په زارو لګيا شول چه ۱۷
دَ هغوي له حدونو ووزي ۱۸ او هر کله چه بيړيِ ته وخوت نو هغه پليت رُوح نيولي سړي ۱۸
ورته وکه چه له هغه سره وي ۱۹ مګر ده اِجازت ورنه که بلکه ورته وِ يي ويل ۱۹
چه ته خپل کور او خپلوانو ته لاړ شه او دوي خبر کړه چه خداوند څه درسره
کړي دِي او څرنګه رحم ني په تا کړي دي ۲۰ او هغه لاړ او په دَکاپولس کښې په ۲۰
وعظ کولو لګيا شه چه څرنګ يسوع ورسره کړي وُو او ټولو تعجب وکړ
۲۱ او هرکله چه يسوع بيا په هغي بيړيِ کښې پوري شه نو يَو لوي ټولي ۲۱
په ده جمع شه او دي درياب ته نژدي وه ۲۲ او يَو دَ عبادت‌خاني له سردارانو ۲۲
چه جايرُ نوم ني وه راغي چه دي ني وليد نو په پښو ني پريوت ۲۳ او په ډيرو ۲۳
زارو سره ني ورته ووَيل چه وړوکي لُور مِ په څنکدن ده راشه او لاس دِ ير
کېږده چه روغه شي او ژونديِ پاتي شي ۲۴ پس دي ور سره روان شه هم ۲۴
يَو لوي ټولي ورپسي شه او په ده ني هجوم راوړ
۲۵ او يَوه ښځه چه له دوولسو کالو ني وينې جاري وي ۲۶ او له ډيرو ۲۵ ۲۶
طبيبانو ربړيدلي وه او ټول خپل مال ني خرچ کړي وه او هيڅ فائده ني مونډلي

٢٧ نه وه بلکه بدتره شوي وه ٢٧ او چه خبر دَ يسوع ئې واوريده نو له هغه
٢٨ هولي سره له وروستو راغله او دَ ده جامي له ئې لاس ورور ٢٨ ځکه چه دي
٢٩ وويل چه که تش د ده جامو له لاس وروړم نو جوړه به شم ٢٩ په هغه دم چينه
دَ وينو دَ دي وچه شوه او دي دَ خپل ځان حال معلوم کړ چه له هغه رنځ
٣٠ جوړه شوي ده ٣٠ او هغه ساعت يسوع په خپل ځان پوه شه چه قوّت له
ده نه ووت نو هغه هولي ته ئې مخ وګرزاوه ورته وئې ويل چه ځما جامي له چا
٣١ لاس وروړ ٣١ شاګردانو ئې ورته ووِ چه ته وينې چه دي هولي په تا باندې
٣٢ هجوم کوي او بيا ته وائي چه چا لاس راوړ؟ ٣٢ پس ده چاپيره نظر وکړ دي
٣٣ دَپارَ چه هغه ځوک چه دا کار ئې کړي دي وئې ويني ٣٣ مګر هغه ښځه په
هر هغه څه چه له دي شوي وُه پوه شوه نو په ويره او په لړزيدو سره
٣٤ ورته راغله او دَ ده په مخ کښې پريوتله ټول رښتيا ئې ورته وويل ٣٤ ده
هغي ته وويل چه اي لُورې ستا ايمان ته خلاصه کړي يې سلامته ځه
او له خپل رنځ روغه اوسه

٣٥ ٣٥ او دي لا په دي ويلو کښې وه چه دَ عبادت‌خانې دَ سردار له کوره
څو تنه ورته راغلل ورته وئې ويل چه لُور دِ مړه شوه اوس څله اُستاذ
٣٦ ته زيات زبَرَ ورکوي؟ چه ده دوي دا خبره کوله يسوع واوريدله نو دَ عبادت‌خانې
٣٧ سردار ته ئې وويل چه مه ويريږه خو تش ايمان راوړه ٣٧ او ده بي له پطرس
او يعقوب او يوحنا ورور دَ يعقوب ئې نور هيڅوک په خپل ځان پسي پري
٣٨ نه ښودل ٣٨ پس دَ عبادت‌خانې دَ سردار کور ته ورغلل او چه شور او هغه
٣٩ خلق چه ډيره ژړا او ويرَ ئې کاوه وئې ليدل ٣٩ پس ورننوت هغو ته ئې ووِ
٤٠ چه تا سو څله شور او ژړا کوئ جينۍ خو مړه نه ده بلکه اوده ده ٤٠ ليکن هغو
په ده پورې وخندل ليکن ده ټول بهر ويستل نو پلار او مور دَ جينۍ او
هغوي چه ور سره وُو وائې خستل هغه ځاي ته چه جينۍ پرته وه ورننوت
٤١ ٤١ او لاس دَ هغي جينۍ ونيو او ورته وئې ويل طَلِيثَاقُومِي ترجمه دَدي دا
٤٢ ده چه زه تا ته وايم اي جينۍ پورته شه ٤٢ او هغه دم جينۍ پاڅيده او

وگرزيده څکه چه هغه دَ دوولسو کالو وَه او په هغه دم خلق ډير ډير حيران
۴۳ شول ۴۳ بيائي په ډير تاکيد سره حکم ور ته وکړ چه په دي کار دِ هيڅوک
خبر نه شي او ور ته وئي ويل چه دي ته دِ دَ خوړلو څه ورکړي شي +

# شپږم باب

۱ ا او له هغه ځايَ بهر ووت او خپل وطن ته راغي او شاګردان ئي ورپسي
۲ تلل ۲ او هر کله چه دَ سَبَّت ورځ شوه نو په عبادتخاني کښ په تعليم
کولو سر شه او ډيرو چه واوريدل حيران شول او وئي ويل چه دي
سړي له کومه دا څيزونه وموندل او دا څه حکمت دَي چه ده ته ورکړي
۳ شه چه داسي معجزي دَده له لاسَ ظاهري کيږي ۳ کنړه دا ترکاڼ نه دَي څه؟
دَ مريمي څوي او دَ يَعقُوب او دَ يوسي او دَ يهُودا او دَ شَمعُون ورور او دَده
۴ خويندي دَلي مونږ څخه نه دِي څه؟ او هغو له ده نه تيندک وخوړ ۴ نو يسوع
هغو ته وويل چه هيڅ نبي بي عزته نه دَي مګر په خپل وطن او په خپلو خپلوانو
۵ او په خپل کور کښ ۵ او هلته ده هيڅ يوه معجزه کولي نه شوه بي له دي چه
۶ په يَو څو ناجوړو بانډِ ئي لاسُونه کيښول او شفائي ورکړه ۶ او ده دَ هغو
بي ايمانيَ ته تعجب وکړ

او په ګير چاپير کليو کښ ګرزيده تعليم ئي کاوه

۷ ۷ او هغه دوولس ته ئي راوبلل او دَ دوو دوو په اَستولو لګيا شه
۸ او دوي ته ئي په ناپاکو روحونو اختيار ورکړه ۸ او دوي ته ئي تاکيد وکه چه دَ لاري دَپارَ له
ځان سره بي له اَمسا نور مه اخلئِ نه ډوډئِ نه ڇوبښ دان نه په کمربند کښ
۹ پيسي ۹ مګر څپلئِ په پښو کړئِ او دوه قميصونه مه آغوندئِ ۱۰ او دوي ته ئي ويل
هر ځاي چه کور ته ننوزئِ هم په هغه کښ اوسئِ تر هغه پوري چه ور نه
۱۱ روان شئِ ۱۱ او هر ځاي چه تاسي نه قبلوئِ او ستاسي نه اورِي نو چه له
هغه ځايَ راووزئِ ګرد دَ خپلو پښو وڅنډئِ دَپارَ دَدي چه په دوي بانډِ شاهدي
۱۲ شي ۱۲ پس هغوي بهر لاړل وعظ ئي کاوه چه توبه دِکوي ۱۳ او ډير پليت روحونه
۱۳ ئي وشړل او به ډيرو رنځورانو ئي تيل ومږل شفا ئي ورکړله

١٤ ١٤ او هیرودیس بادشاه واورېده له دي سببَ چه نوم دَ ده
مشهور شوي وه نو وئي ویل چه یُوحَنّا بپتسما ورکونکي له مړیو نه
ژوندي پورته شوي دي او په دي سبَب له ده نه معجزي ښکاره کیږي -
١٥ ١٥ نورو ویل اِلیاس دي او ځینو وویل چه دا یوَ نبي دي او یا خو له نبیانو نه
١٦ دَ یوَه په شان دي ١٦ مګر چه هیرودیس واورېدل نو وئي ویل چه دا خو
١٧ هغه یوَحَنّا دي چه ما سر ورنه پرېکړي وه پورته شوي دي ١٧ ځکه چه
هیرودیس پخپله استولي وه یُوحَنّا ئي ونیوه او په قیدخاني کښ ئي بند کړ دَپارَ دَ
هیرودیي ښځه دَده دَ ورور فیلپُوس چه ده هغه په خپله نکاخ کړي وه
١٨ ١٨ ځکه چه یُوحَنّا هیرودیس ته ویلي وُو چه تا ته دَخپل ورور دَښځي لرل
١٩ روا نه دي ١٩ نو هیرودیه دَده مخالفه شوه او غوښتل ئي چه دي مړ کړي
٢٠ مګر نه ئي شه کولي ٢٠ ځکه چه هیرودیس له یُوحَنّا نه ویریده صادق او
پاک سړي ئي ګاڼه او دَده ساتنه ئي کوله او چه ئي اورېده نو ډیر به ور نه
٢١ حیران کیده او په خوښي سره ئي اورېدل ٢١ او چه ښه وقت راغي
چه هیرودیس دَ خپل پیدا کیدلو په ورځ دَ خپلو امیرانو او دَ سردارانو او دَ
٢٢ جلِیل دَ غټانو دَپارَ میلمستیا وکړه ٢٢ نو دَ هیرودیي لُور ورننوتله او ور ته
وګډیدله هیرودیس او دَده مجلسیان ئي خوشحالَ کړل پس بادشاه هغي
جینئ ته وویل چه هر څه چه له ما نه غواړي سوال ئي وکړه زه به هغه در کړم
٢٣ ٢٣ او سوګند ئي ور ته وخوړ چه هر څه چه له ما نه وغواړي ځما تر نیمي بادشاهئ
٢٤ پوري در به ئي کړم ٢٤ او دا بهر لاړه خپلي مور ته ئي ووِ چه زه څه وغواړم؟
٢٥ نو وئي ویل چه سر دَ یُوحَنّا بپتسما ورکونکي ٢٥ بیا دا زر په جلتئ سره بادشاه
ته راغله سوال ئي وکه وئي ویل چه دا غواړم چه اوس دَ یُوحَنّا بپتسما ورکونکي
٢٦ سر په تالِکي کښ راکړي ٢٦ نو بادشاه ډیر غمګین شه مګر دَ خپلو قسمونو او دَ
٢٧ مجلسیانو په سببَ ئي نه غوښتل چه هغه محرومه کړي ٢٧ او دستي بادشاه
یوَ جلات واستاوه حکم ئي وکړ چه سر ئي راوړي شي او هغه لاړ سر دَده ئي
٢٨ په قیدخاني کښ پرېکړ ٢٨ او په تالِکي کښ ئي سر راوړ هغي جینئ ته ئي ورکه

او جینۍ خپلې مور ته ورکړ ۲۹ او چه شاګردانو ئې واورېدل راغلل نو هغه ۲۹
مړي ئې واخست په قبر کښ ئې کېښود
۳۰ او رسولان یسوع ته ورجمع شول او هر څه چه دوي کړي وُو ۳۰
او ښوولي ئې وُه ور ته بیان ئې کړل ۳۱ او دوي ته ئې وویل چه تاسو یوه ۳۱
ځاي بیابان ته ګوښي راشئ او لږ څه آرام وکړئ ځکه چه هلته دومره ډېر
خلق تلل او راتلل چه دوي د ډوډي خوړلو وار هم نه مونده ۳۲ پس په یوي ۳۲
بېړۍ کښ ګوښي یوه بیابان ته لاړل ۳۳ او چه دوي تلل نو ډېرو وپېژاندل ۳۳
او له ټولو ښهرونو نه پلي ور وزغلېدل او له هغو وړاندِ هلته ورسېدل -
۳۴ او چه بهر راغي نو یو لوي ټولي ئې ولید زړه ئې پرِ وسه ځکه چه هغوي ۳۴
د هغو ګډورو په شان وُو چه شپون ئې نه وِي او ده هغو ته د ډېرو خبرو
په تعلیم ورکولو شروع وکړه ۳۵ او چه اکثره ورځ تېره شوه نو شاګردان ئې ۳۵
ور ته راغلل او ور ته ئې وویل چه دا ځاي وران او وقت په تېرېدو دي -
۳۶ دوي رخصت کړه چه ګېرچاپېر بانډو او کلیو ته لاړ شي او د ځان ۳۶
د پاره څه خوراک وپېري ۳۷ مګر ده ځواب ورکړ و ئې ویل چه تاسو ورکړئ ۳۷
چه وئ خوري ور ته وویل چه باري لاړ شو او د دوو سوو دینارو ډوډئ
وپېرو چه په دوي ئې وخورُوو ۳۸ هغو ته ئې وویل چه تاسو څو ډوډئ لرئ ۳۸
لاړ شئ و ئې ګورئ او چه هغوي پوه شول نو وئې ویل چه پنځه
او دوه کبان ۳۹ بیا ئې هغو ته حکم ورکه چه ټول دِ ټولۍ ټولۍ په شنو ۳۹
وښو کښېني ۴۰ نو هغوي صَف صَف او سل سل او پنځوس پنځوس کېناستل ۴۰
۴۱ او ده هغه پنځه ډوډئ او دوه کبان واخستل د آسمان په طرف ئې وکتل ۴۱
برکت ئې ورکه او ډوډي ئې ټکړي ټکړي کړي او شاګردانو ته ئې ورکړي چه
د هغو په مخ کښ ئې کېږدي او ده هغه دوه کبان په هغو ټولو ووېشل-
۴۲ او ټولو وخوړل او ماړه شول ۴۳ او له ټکړو نه دوولس ډکي ټوکرئ او ۴۲ ۴۳
له کبانو نه ئې هم واخستلي ۴۴ او ډوډئ خوړونکي قریب پنځه زره سړي وُو ۴۴
۴۵ او دستي ئې خپلو شاګردانو ته په تاکید سره حکم ورکه چه تر ۴۵

هغه پورې چه زه خلقو له رخصت ورکوم تاسي بېړۍ ته وخېژۍ او له
۴۶ ما وړاندِ په پورې غاړې بَيتِ صَيدا ته ورشئ ۴۶ او چه هغو ته ئې رخصت
۴۷ ورکه نو دَ دُعا کولو دَپارَ په غره وخوت ۴۷ او چه نمابنام شه بېړۍ دَ درياب
۴۸ په مينځ کښ وه او دي يواځي په وچه وه ۴۸ اوچه دوي ئې له چپو وهلو په عذاب
وليدل ځکه چه باد په دوي مخالف وه نو په څلورم پهر دَ شپي تلونکي په
۴۹ درياب باندِ ورته راغئ و ئې غوښتل چه له دوي نه تير شِي ۴۹ ليکن
چه هغو په درياب باندِ تلونکي وليد نو گُمان ئې وکه چه دا څه خيال دَي او
۵۰ ناري ئې وکړي ۵۰ ځکه چه ټولو وليد او ووېرېدل ليکن ده سمتي له هغو
۵۱ سره خبري وکړي ورته و ئې ويل چه خاطِر جمع لرئ زه يم مه وېرېږئ ۵۱ او پس
بېړۍ ته ور وخوت او باد ودرېده او په خپلو کښ ډېر ډېر حيران شول ځکه چه
دوي دَ ډوډو په (معجزه) پوه نه شول ولي چه زړونه ئې سخت وُو
۵۳ ۵۳ او دوي پورې وتل دَ گنيسرت زمکي ته ورغلل او بېړۍ ئې له
۵۴ غاړې سره وتړله ۵۴ او چه له بېړۍ نه کوز ووتل نو هغه دم دي خلقو
۵۵ وپېژاند ۵۵ او په هغه ټول ملک په منډه گرزېدل او رنځوران ئې په کټونو
وروړل هغه ځاي ته چه دوي اورېدل چه دي هلته دي ——
۵۶ ۵۶ او هر چرته چه دي به کليو يا ښهرونو يا پټيو ته ننه ووت نو رنځوران
به ئې په بازارونو کښ کيښول او ده ته ئې زارۍ کولي چه ننه دَ هغه دَ
جامي لمن دِ مسه کړي پس هر چا چه هغه مسه کړه جوړ شه ❊

# اووم باب

۱ ۱ او فريسيان او څو کاتبان چه له اورشليمَ راغلل نو ده ته راټول شول -
۲ ۲ او دوي څو تنه دَده له شاگردانو نه وليدل چه په ناپاکو يعني په ناوليو
۳ لاسونو ئې ډوډۍ خوړله ۳ ځکه چه فَرِيسِيّان او ټول يَهُودِيان دَ خپلو بزرگانو
په روايت باندِ دا سي عمل کوِي چه ترڅو پوري چه لاسونه ترڅنګلو پوري
۴ ونه وِينځِي ډوډۍ نه خورِي ۴ او چه له بازارَ (راشِي) نو تر هغه پورې چه غُسل
ئې کړي نه وِي څه نه خورِي او نور ډېر رسمونه دِي چه دَ هغوساتل ئې منظور کړِي

دِي لکه چه دَ پيالو او دَ تالکو او دَ مَسِينو لوښو وِينځل ۵ نو فَرِيسِيّانو او ۵
کاتبانو له ده پوښتنه وکړه چه ستا شاګردان ولي دَ بزرګانو په روايت
نه ګرزي بلکه په ناپاکو لاسو ډوډۍ خوري ۶ او ده ورته ووېل چه اَشعيا ۶
ستاسو دَ رياکارو په حق کښ څه ښه نبوت کړي دي لکه چه لِيکلي شوِي
دِي چه

دا قوم څما عِزّت په شُونډو کوِي
مګر زړه ئې له ما نه لري دي
۷ دوي بي فائدي څما عِبادت کوِي ۷
څکه چه هغه انسانِي رسمونه دَ فرضو په شان تعلِيم ورکوِي

۸ تاسو حکم دَ اَللّٰه ترک کوئِ او دَ سړو روايت ټينګ نيسئِ ۹ او ده ورته ۸ ۹
ووېل چه تاسو حکم دَ اللّٰه په ښه شان سره باطلوئِ دي دَپارَه چه خپل
روايت وساتئِ ۱۰ ولي چه مُوسیٰ ويلي دِي چه دَ خپل پلار او مور عِزّت ۱۰
کوه او که چِرِ څوک په پلار يا په مور بد ووايي هغه دِ قتل کړي شي ۱۱ مګر ۱۱
تاسو وايئِ چه که کوم سړي خپل پلار يا موز ته ووايي قربان يعني بخښنه
ده هغه څه چه تاسي ته له ما نه فائده وکړي شِي ۱۲ او هغه سړي نه پرېږدئ ۱۲
چه له خپلَ پلارَ يا له مور سره څه وکړي ۱۳ پس تاسو کلام دَ اَللّٰه ۱۳
په خپل روايت سره چه جارِي کړي مو دي باطل کوئِ او دا رنګ ډېر کارونه
کوئِ ۱۴ بيا ده هغه ټولیَ راوباله او ورته وئِ ويل چه تاسو ټول څما ۱۴
واورئِ او پوه شئِ ۱۵ داسي هيڅ نشته چه سړي ته له بهرَ ورننوزي دي ناپاک ۱۵
کولي شِي مګر هغه څيزونه چه له سړِي نه بهر راووزي هم هغه سړي
ناپاکوِي ۱۷ اوچه له هغه ټولي نه کور ته ننوت نو شاګردانو ئې دَ هغه ۱۷
متل په باب کښ پوښتنه ترِ وکړه ۱۸ او دوي ته ئې ووېل چه تاسو ۱۸
هم داسي بي پوهي يئِ کنه تاسو نه پوهيږئِ چه هر څه چه له بهرَ په سړي
کښ ننوزي ناپاک کولي ئې نه شِي ۱۹ څکه چه هغه دَده په زړه کښ نه ننوزي ۱۹
بلکه دَده په کېده کښ او په چارچوبۍ کښ پرېوزي او ټول خواړه پاک

٢٠ کړي ٢٠ بيا ئي وويل چه هغه څه چه له سړي نه بهر را ووزي هم هغه سړي
٢١ پليتوي ٢١ ځکه چه له دننه يعني دَ سړي له زړه نه بدخيالونه ووزي فسق
٢٢ غلا خُونُونه زِناکاري ٢٢ طمع شرارتُونه ټګي خبـاثت بدنظر کُفر کبرجني
٢٣ جاهلي ٢٣ دا ټول بدخيزونه له دننه راووزي او سړي پليتوي
٢٤ ٢٤ پس له هغه ځايه پاځيده دَ صُور او صَيدا سرحدته ورغي او هلته
په يَو کور کښ ننوت او وئي غوښتل چه هيڅوک را باندِ خبر نه شي مګر
٢٥ پټيدلي نه شه ٢٥ ځکه چه يَوي ښځي چه ورُوکي لُور ئي ناپاک رُوح لاره چه
٢٦ خبر دَده ئي واوريده نو راغله په پښو ئي پريوتله ٢٦ هغه ښځه يُوناني او له
اَهلَ دَ سُورا َوفِنِيقِي وه او ده ته ئي زارِي وکړه چه پَلِيت رُوح دَ هغي دَ لُور نه
٢٧ وشړي ٢٧ او ده هغي ته وويل پريږده چه اوّل ځامن ماړه شي ځکه چه دَ
٢٨ هلکانو ډوډيِ اخستل او کُوتړيو ته اَچول ښه نه دِي ٢٨ هغي په ځواب
کښ ورته وويل چه هو اي خداوندَ ځکه چه کُوتړي هم دَ ځامنو ترخوانچي
٢٩ لاندِ له پـوڅـيـو خوري ٢٩ بيا ئي دي ته وويل چه هم دَدي خبري دَپارَ
٣٠ لاره شه هغه پَلِيت رُوح ستا له لُوره وتلي دَي ٣٠ پس چه دا خپل کور ته
راغله نوجينۍ په کټ باندِ پرته او پَلِيت رُوح وتلي ئي بيامونده
٣١ ٣١ او بيا دَ صُور له حده بهر ووت او دَ صَيدا په لاري دَ دِکاپُولس
٣٢ دَ سرحدونو په مينځ کښ دَ جَلِيل درياب ته راغي ٣٢ او هغو يَو کُونړ او ترتړي
٣٣ ده ته راوست زارِي ئي ورته وکړه چه خپل لاس دِ پرِ کښيږدِي ٣٣ نو ده هغه
له ټولِي نه کونبي بوت او خپلي ګوتي ئي دَ هغه په غوږونو کښ کينبودي او
٣٤ خپله لاړه ئي واخستله او دَ هغه په ژبه ئي پوري کړله ٣٤ او آسمان ته ئي وکتل
٣٥ آه ئي وکړ او ده ته ئي وويل چه اِفتَح يعني پرانتلي شه ٣٥ او غوږونه دَ هغه
٣٦ پرانتلي شول او غوټه دَ ژبي ئي خلاصه شوه او صاف صاف ويونکي شه ٣٦ او
هغو ته ئي تاکيد وکړ چه هيچا ته دِ نه وائِي ليکن څومره چه ئي زيات تاکيد
٣٧ ورته وکړ دومرِه زيات ئي مشهور کړ ٣٧ او له حده زيات حيران شول
و ئي ويل چه ده هر څه ښائسته کړي دِي کاڼه اوريدونکي او ګونګان

وبونکي کوي ÷

# اتم باب

۱ آ په هغو ورځو کښ چه بيا ډېر خلق جمع شول او دَ خوړلو ئي هيڅ نه لرل
۲ نو ده خپل شاګردان را وبلل او ورته وئي ويل ۲ چه په دي ټولي م زړه وسه
ځکه چه اوس دريمه ورځ کيږي چه دوي له ما سره دِي او دَ خوړلو هيڅ نه
۳ لري ۳ او که چري زه دوي خپلو کورونو ته وږي رخصت کړم نو په لاري کښ
۴ به ستومانه شي ځکه چه ځني له هغو نه له لري نه راغلي دِي ۴ او شاګردانو ئي
ځواب ورکه چه له کومه ځوک توانيږي چه دوي ئه دي بيابان کښ په ډوډئِ ماړه
۵ کړي ۵ ده له هغو نه پوښتنه وکړه چه تاسو څخه څو ډوډئِ دِي دوي وويل
۶ چه اووه ۶ بيا ده ټولي ته حکم ورکړ چه په زمکه دِ کښيني او ده هغه
اووه ډوډئِ واخستلي او شکر ئي وکه او ټوکړي ټوکړي ئي کړي خپلو شاګردانو
۷ ته ئي ورکړي چه دَ هغو په مخ کښ ئي کيږدي ۷ او هغو څخه يَو څو ووړکي کبان
۸ وُو په هغو ئي برکت ووايه او وئي ويل چه دا دِ هم ورته کيږدئِ ۸ او ووئي
خوړل ماړه شول او له هغو ټوکړو نه چه زياتي شوي وي اووه شکورونه
۹ ۱۰ ئي واخستل ۹ او قريب څلور زره وُو او هغوي ئي رخصت کړل ۱۰ او دي له
خپلو شاګردانو سره دستي بيړيِ ته وخوت او دَ دَلمَنُوتا په اطرافو باندِ راغي
۱۱ ۱۱ او فَرِيسِيان بهر ووتل له ده سره په بحث کولو لګيا شول او دَ
۱۲ ده دَ ازمايلو دَپارَه ئي اسماني نښه تر وغوښتله ۱۲ او ده له زړه نه اسويلي
وکه وئي ويل چه څله دا پيړيَ نښه غواړي زه تاسو ته رښتيا وايم چه
۱۳ دي پيړيِ ته به هيڅ نښه ورکړه نه شي ۱۳ او هغوي ئي پريښول بيا بيړيَ
ته وخوت او پوري غاړي ته روان شه
۱۴ ۱۴ او دَ ډوډئِ را اخستل ئي هېرشول او له ځان سره په بيړيِ کښ ئي
۱۵ بي له يوي ډوډئِ نورڅه نه لرل ۱۵ او ده هغو ته تاکيد وکه وئي ويل چه خبردار شئ
۱۶ دَ فَرِيسِيانو له خميري او دَ هيروديس له خميري نه پرهيز کوئ ۱۶ او هغو په خپل منځ
۱۷ کښ سره خبري وکړي وئي ويل چه مونږ څخه ډوډئِ نشته ۱۷ او يسوع

پــوه شه ورته وئ ويل چه تاسو ولې دا فکر کوئ چه ډوډئ نه لرئ څه؟
لا تر اوسه نه کتېږئ او نه پوهېږئ او ستاسو زړه سخت شوي دي څه؟ -
۱۸ ۱۸ سترګي لرئ او نه وينئ څه؟ او غوږونه لرئ او نه اورئ څه؟ او په ياد نه
۱۹ لرئ څه؟ ۱۹ هغه وقت چه پنځه ډوډئ مِ په پنځو زرو ماتي کړي او څو ټوکرئ
۲۰ مو ډکي له ټوکرو واخستلي هغو ورته وويل دوولس ۲۰ او هغه وقت چه
اووه مِ په څلورو زرو او څو شکورنه مو ډک له ټوکرو واخستلي هغو ورته
۲۱ وويل اووه ۲۱ او دوي ته ئ وويل چه نو ولې نه پوهيږئ
۲۲ ۲۲ دوي بَيتِ صَيدا ته راغله نو يَو روند سړي ئ ورته راوست او
۲۳ زاري ئ ورته وکړه چه دا دِ مسه کړي ۲۳ نو ده هغه روند تر لاس ونيو له
کلي ئ بهر بوت او په سترګو کښ ئ ورتوکړل او خپل لاسونه ئ پر کيښول
۲۴ پوښتنه ئ ترې وکړه چه څه وينې ۲۴ هغه پورته وکتل و ئ ويل چه زه
۲۵ سړي وينم چه دَ وني په شان تلونکي په نظر راځي ۲۵ او بيا ئ دَ هغه په
سترګو لاسونه کيښول نو هغه پاس وکتل جک جوړ شه او هر څه ئ څرګند
۲۶ وليدل ۲۶ او ده هغه خپل کورته واستاوه او و ئ ويل چه کلي ته
هم مه ننوزه
۲۷ ۲۷ او يسوع او شاګردان ئ دَ قيصَريې دَ فِلِپّي کليو ته ووتل او په
لاري کښ ئ له خپلو شاګردانو نه پوښتنه وکړه و ئ ويل چه ما ته سړي څه
۲۸ وائي چه زه څوک يم ۲۸ دوي ځواب ورکه چه يوحَنّا بپتسما ورکونکي او څني
۲۹ اِلياس او څني يَو له نبيانو ۲۹ او ده له دوي پوښتنه وکړه چه تاسو وائه څه
۳۰ وائئ چه زه څوک يم پطرس ځواب ورکه و ئ ويل چه ته مسيح يي ۳۰ بيا هغوي
۳۱ ته ئ تاکيد وکړ چه هيڅوک به ما مه خبروئ ۳۱ او هغو ته ئ په دې
تعليم کولو شروع وکړه چه په ابنِ آدم لازم دي چه ډير ډير ورځي او له
سپين ږيرو او له بزرګانو دَ کوهِنانو او له کاتبانو نه رد کړي شي او وژلي
۳۲ شي او پس له دريو ورځو ژوندي پورته شي ۳۲ او ده دا خبره څرګنده کوله
۳۳ او پطرس دي ونيو په ترټلو ورته لګيا شه ۳۳ مګر دي وګرزيده او

خپلو شاګردانو ته ئي وکتل او پَطرُس ئي وترټه او و ئي ويل چه اي شيطانه
را نه لري شه ځکه چه ته دَ اَلله دَ څيزونو فکر نه کوي بلکه دَ انساني څيزونو
۳۴ او ده هغه خلق له خپلو شاګردانو سره را وبلل او ورته و ئي ويل که څوک ۳۴
په ما پسي تلل غواړي نو له خپله ځانه دِ انکار وکړي او خپل صَلِيب
دِ واخلي او په ما پسي دِ ځي ۳۵ ځکه هرڅوک چه خپل ځان خلاصول ۳۵
غواړي هغه به ئي ځان ورک کړي او هر څوک چه خپل ځان ځما او دَ
انجيل دَپارَ ورک کړي هغه به ئي خلاص کړي ۳۶ ځکه چه که سړي ټوله ۳۶
دُنيا وګټي او خپل ځان بائلي نو څه فائده لري ۳۷ ځکه چه دَ خپل ۳۷
ځان په بدلي کښ به سړي څه ورکړي ۳۸ له دي سببَ هرڅوک چه په ۳۸
دي زِناکاره او ګنهګاره پيړۍ کښ له ما او ځما له کلامونو شرم وکړي
نو اِبنِ آدم به هم هغه وقت چه دَ خپل پلار په لوئي کښ له پاکو
فرښتو سره راشي ورنه به و شرميږي +

# نهم باب

۱ او هغو ته ئي وويل چه زه تاسي ته رښتيا وايم چه ځني له ولاړو نه ۱
دلته شته دي چه دَ مرګ مزه به و نه څکي تر هغه پوري چه دَ اَلله
بادشاهي له قدرتَ سره راتلونکي و نه وِيني
۲ او پس له شپږو ورځو يسوع پَطرُس او يَعقُوب او يُوحَنا واخستل ۲
او يَوه لوړ غره ته ئي په پټه بوتلل او دَ دوي دَ وړاندِ دَده صُورت بدل شه
۳ او پوشاک ئي ځليدونکي او بيحده سپين شه هسي چه هيڅ دوبي په ۳
دُنيا کښ دا رنګه سپينولي نه شي ۴ او اِلياس سره له مُوسیٰ دوي ته ۴
ښکاره شول او دغو له يسوع سره خبري اتري کولي ۵ او پَطرُس په ځواب ۵
کښ يسوع ته وويل چه اي اُستاذه ښه دي چه مونږ دلي يُو او دري خيمي
دِ جوړي کړو يَوه ستا دَپارَ او يَوه دَ مُوسیٰ او يوه دَ اِلياس ۶ ځکه چه دي نه ۶
پوهيده چه څه ووايي ځکه چه دوي ډير ويريده ۷ او په دوي باندِ يَوه اوريځ ۷
سوري کونکي شوه او له هغي اوريځي نه آواز راغي چه دا هغه ځما محبوب ځوي دي

٨ تاسو دَده واورئِ ٨ او دستِي ئي په گردا گرد نظر وکه نو بي له يسوعِ ئي ‌بِواځي
نور هيڅوک له ځانَ سره و نه ليدل
٩ ٩ او چه له غرِه راکوزيدل نو دوي ته ئي تاکيد وکه چه هغه چه
تاسي ليدلِي دِي هيچا ته ئي مه وايئِ ترهغه پوري چه اِبْن آدم له مړيو
١٠ ژوندي راپورته شوي نه وِي ١٠ او دوي هغه خبرِه وساتله په خپل مينځ
١١ کښِ ئي بحث په کښِ کاوِه چه له مړيو ژوندِي پورته کيدل څه دِي ١١ او
هغو له ده پوښتنه وکړِه چه کاتبان ولي وايِي چه دَ اِلْيَاس راتلل وړنبِي
١٢ بائِده دِي ١٢ ده ورته وويل چه بي‌شکَ اِلْيَاس خو به وړنبي راشِي اوهر
څه به په خپل حال کړِي او دَ اِبْنِ آدم په حق کښِ څنگه چه ليکلِي
١٣ شوِي دِي چه دي به ډير څه وزغمِي او سپک به وگنړلِي شِي ١٣ مگر زه تاسي
ته وايِم چه اِلْيَاس راغلي دَي او هغه ئي ورسره وکړل چه دوي غوښتل
لکه چه دَ هغه په حق کښِ لِيکلِي شوي وُو
١٤ ١٤ او هر کله چه خپلو شاگردانو ته راغي نو ډير ګڼولي ئي ترِ چاپيره
١٥ او کاتبان ئي له دوي سره سوال کونکي وليدل ١٥ او دستي واره ګڼولِي چه دي وليد
١٦ نو ډير ورته حيران شول او په دَوْدَوْ ورَغلل سلام ئي ورته وکړ ١٦ نو ده
١٧ هغوي ته ووِ چه له دغو سرِه څه بحث کوئِ؟ ١٧ او يَوِه له هغه ګڼولِي نه ځواب
ورکه چه اي اُستاذه ماخپل ځوي چه په ده کښِ گونگ رُوْح دي تا ته راوړ
١٨ ١٨ او هغه هري خوا ته چه ئي بوزِي هلته ئي وپرزوِي او ځگونه کوِي او
غاښونه چيچِي او سره وچ شِي او ستا شاگردانو ته مِ وويل چه دا وباسئِ
١٩ مگر دوي و نه توانيدل ١٩ ده په ځواب کښِ ورته وويل چه اي بي‌ايماني پيړئِ
ترکومه پوري زه به له تاسو سره يم او ترڅو پوري به تاسي ته صبر کوم هغه ما
٢٠ ته راولئِ ٢٠ او دوي هغه ورته راوست او چه دي ئي وليد نو دستِي هغي رُوْح
دي په زور سره ومروړِه او په زمکه پريوت ځگونه ئي ويستلِي ورغړيده۔
٢١ ٢١ پس دَ هغه له پلارَ ئي پوښتنه وکړِه چه څو مُده شوي ده چه دا پرِراغي هغه
٢٢ ورته وويل چه له ورکوالِي نه ٢٢ او ډير واره ئي په اور او په اوبو کښِ

غورزولي دَي چه هلاک ئي کړي او که څه کولي شي نو مونږ باندې رحم وکړه
او مدد راکړه ٢٣ يسوع ور ته وويل چه ولي وايي که کولي شي ټول څه کيدلي ٢٣
شي چه ايمان راوړي ٢٤ نو دَ هغه هلک پلار دستي ناري وکړي و ئي ويل ٢٤
چه ايمان راوړم ته خما دَ بي‌ايمانئ مدد وکړه ٢٥ او يسوع دا وليدل چه ټولي په ٢٥
منډو سره راټوليږي نو هغه ناپاک رُوح ئي وټراټه ورته و ئي ويل چه اي کونګه
کُنړه رُوحه زه حکم درته کوم چه له ده نه بهر راووزه او بيا مه ور ننووزه
٢٦ هغه ناره وکړه او هغه ئي ډير و مروړه او ور نه بهر را ووت او دَ مړي ٢٦
په شان شه چه ډيرو وويل چه مړ دَي ٢٧ مګر يسوع لاس دَ هغه ونيو او ٢٧
پورته ئي که او هغه هم ودريده ٢٨ او چه کور ته راغي نو شاګردانو ئي په ٢٨
کوټه کښ ور نه پوښتنه وکړه چه مونږ هغه ولي يستلي نه شه ٢٩ ده ور ته ٢٩
وويل چه په هيڅ وجه نه توانيږي چه بهر ووزي بي له دُعا نه
٣٠ بيا له دغه ځايه ووتل او دَ جليل په مينځ کښ ګرزيدل او نه ئي ٣٠
غوښتل چه څوک پر خبر شي ٣١ ځکه چه ده خپلو شاګردانو ته ښوول او ور ته ٣١
ئي ويل چه اِبنِ آدم به دَ سړو لاسونو ته وسپارلي شي او هغوي به ئي ووژني
او پس له وژلو به په دريمه ورځ ژوندي پورته شي ٣٢ مګر هغوي په دي ٣٢
خبري پوه نه شول او په پوښتنه کولو له ده نه ويريدل
٣٣ بيا کَفَرنحُوم ته راغلل او چه دي په کور کښ وه نو له هغو نه ئي ٣٣
پوښتنه وکړه چه تاسو په لاري کښ څه بحث سره کاوه ٣٤ دوي چُپ شول ٣٤
ځکه چه په لاري کښ ئي دا بحث سره کړي وه چه په مونږ کښ څوک لوي
دي ٣٥ او دي کښيناست او هغه دوولس ئي را وبلل او ور ته وئي ويل چه ٣٥
که چري څوک دا غواړي چه ورمبَي شي نو له ټولو نه ورستي او دَ ټولو خدمتګار
به شي ٣٦ او يَو ورُوکي هلک ئي واخست و دَ هغو په مينځ کښ ئي ودراوه ٣٦
او چه هغه ئي په غيږ کښ نيولي وه نو هغو ته ئي ويل ٣٧ چه هر څوک ٣٧
چه له داسي ورُوکيو هلکانو نه يَو خما په نامه قبلوي هغه ما قبلوي او هر
څوک چه ما قبلوي هغه ما نه قبلوي بلکه خما راستونکي قبلوي

۳۸ ۳۸ یُوحَنّا ورته وویل چه اي اُستاذَ یَو سړي مو ولید چه ستا په نامه
پَلیت رُوحونه وباسي هغه چه په مونږ پسي نه راته نو
۳۹ هغه مو منعَ که ۳۹ نو یسوع ورته وویل چه هغه مه منعَ کوئِ ځکه چه
هیڅ سړي نشته چه ځما په نامه معجزي وکړي او بیا هغه دستي ما ته
۴۰ بد ویلي شي ۴۰ چه هغه چه مخالف له مونږَ نه دِي هغه ځمونږ په لوري دِي
۴۱ ۴۱ ځکه چه هرڅوک چه تاسو ته کاسه دَ اوبه دَ څښلو دَپارَ درکړي له دي
سبَبَ چه دَ مسیح یئِ نو زه تاسي ته رښتیا وایم چه هغه به خپل اجر
۴۲ ورک نه کړي ۴۲ او هرڅوک چه له دي وړوکیو نه چه په ما باندِ ایمان
راوړي یَوه ته تیندک ورکړي دَ هغه دَپارَ دا غوره دَه چه دَ ژرندي پل دَده
۴۳ په غاړه کښ څوړندکړي شي او دریاب ته وغورزولي شي ۴۳ او که چرِ ستا لاس
تا ته تیندک درکړي نو پرې ئې کړه ځکه چه تا ته غوره دِي چه ګډ په ژوندانه
کښ ننوزِي له هغه نه چه دوه لاسونو دِ وِي او جَهَنَّمْ ته په هغه اور
۴۵ کښ چه نه مړي لاړ شي ۴۵ او که چرِي ستا پښه تا له تیندک درکوِي
نو پرې ئې کړه ځکه چه ستا دَپارَ غوره ده چه ګډ په ژوندانه کښ ننوزي
۴۷ له هغه نه چه دوه پښي دِ وِي او په جَهَنَّمْ کښ وغورزولي شي ۴۷ او که چرِي ستا
سترګه تا له تیندک درکوِي نو وئې باسه ځکه چه ستا دَپارَ غوره دا ده چه کاڼړا
په بادشاهئِ دَ اَللّٰه کښ داخل شي له هغه نه چه دوه سترګي لرِي او په
۴۸ جَهَنَّمْ کښ وغورزولي شي ۴۸ په هغه ځای کښ چه چینجي ئې نه مرِي او اور
۴۹ ۵۰ ئې نه مړ کیږي ۴۹ ځکه چه هرڅوک به په اور سره نمکین شي ۵۰ مالګه
ښه ده مګر هرکله چه مالګه بې مالګي شي نو په څه څیز به ئې مزه داره کړئِ
په خپل ځان کښ مالګه ولرئِ او په خپل مینځ کښ صلحه وکړئِ +

## لسم باب

۱ آ او له هغه ځایَ پورته شه دَ یَهُودِیي په سرحد باندِ او پوري غاړه دَ
اُردَنَ راغې او بیا ټولي ورته راجمع شول او موافق په خپل دستور ئې بیا
۲ دوي ته تعلیم کاوه ۲ او فَرِیسیّان ورته راغلل یو بښتنه ئې تر وکړه چه

سرِي له دَخپلي ښځي پرېښول روا دِي كه نه آزمايَښت ئي پسِر كاوه —
۳ ۴ ۳ ده په ځواب كښ ور ته ووِيل چه مُوسىٰ تاسو ته څه وفرمايل ۴ دوي
وويل چه مُوسىٰ اِذن راكوِي دي چه طلاقنامه دِ وليكلي شِي او پري دِ ئي
۵ بدِي ۵ يسوع ور ته وويل چه ده ستاسو دَ سخت دلئ له سببَ تاسو ته دا
۶ ۷ حكم وليكه ۶ مگر له اوّل دَ پيدائښتَ نر او ښځه ئي پيدا كړل ۷ له دي سببَ
۸ به سري خپل پلار او مور پرېږدِي او له خپلي ښځي سره پيوست شِي ۸ او دوي
دواړه به سره يَو تَنْ شِي داسي چه پس له دي دوي دوه تنه نه دِي بلكه
۹ ۱۰ يَو تَنْ دي ۹ نو هغه چه اَللّٰه سره په جمع كړِي دِي سري دِ ئي نه بېلوي ۱۰ بيا په
۱۱ كور كښ شاگردانو دَدي خبري په باب كښ پوښتنه تر وكړه ۱۱ نو دوي ته ئي
وويل چه هرڅوك چه خپله ښځه پرېږدِي او بله په نكاح كړِي دَ هغي
۱۲ سره زِنا كوِي ۱۲ او كه چري ښځه خپل خاوند پرېږدِي او دَ بل سره نكاح
وكړِي زِنا كوِي
۱۳ ۱۳ او وړوكِي هلكان ئي ور ته راوړل چه مسه ئي كړِي او شاگردانو
۱۴ ئي وترټل ۱۴ مگر يسوع چه دا وليدل نو په قهر شه او هغو ته ئي وويل
پرېږدئِ چه هلكان ما ته راشِي او مه ئي منعَ كوئِ ځكه چه بادشاهِي دَ
۱۵ اَللّٰه دَ داسي دَه ۱۵ زه تاسي ته رښتيا وايم چه هرڅوك چه بادشاهِي دَ اَللّٰه
دَ وړوكِي هلك په شان قبولَ نه كړِي هيچرِي به په هغه كښ دننه نه وزِي
۱۶ ۱۶ او هغوي ئي په غيږ كښ ونيول خپل لاس ئي په هغو كيښودل بركت
ئي وركه
۱۷ ۱۷ او چه لاري ته وتَه نو يَو سړِي په دَوْ دَوْ ور ته راغي او دَده په
پښو پريوت او له ده ئي پوښتنه وكړه چه اي نيكه اُستاذه زه څه وكړم چه دَ
۱۸ اَبَدِي ژوندانه وارث شم ۱۸ يسوع ور ته ووِ چه ولي ما ته نيك وايي هيڅوك
۱۹ نيك نشته مگر بي له يَوه يعنيٰ اَللّٰهَ ۱۹ ته په حكمونو پوهيږي چه خُون مه كوه
زِنا مه كوه غلا مه كوه په دروغَ سره شاهدِي مه له تكِي مه كوه دَ خپل
۲۰ پلار او مور عزّت كوه ۲۰ هغه ور ته وويل چه اي اُستاذ دا ټول مِي له هلكتوب

۲۱ نه ساتلي دِي ۲۱ يسوع چه هغه ته وکتل نو مينه ئي پرِ وکړه او ورته وئي ويل
چه تا ته يو څيز پاتي دَي لاړ شه او هر څه چه لري خرڅ ئي کړه او غريبانو ته
۲۲ ئي ورکړه نو ستا دَپارَ به په آسمان کښ خزانه وِي او راشه راپسي شه ۲۲ او
هغه له دي خبري خپه شه او غمجن لاړ شه ځکه چه ډير مال ئي لاره
۲۳ ۲۳ او يسوع کيرچاپيره نظر وکه اوخپلو شاګردانو ته ئي وويل چه دولتمندان
۲۴ به په څومره مشکل سره په بادشاهئِ دَ اَللّه کښ ننوزِي ۲۴ او شاګردان دَ ده
خبرو ته حيران شول مګر يسوع بيا په ځواب کښ ورته وويل چه اي
هلکانو څرنګ ګران دِي دَ هغه دَپارَ چه په دولت باندِ توکل کوِي چه دَ
۲۵ اَللّه په بادشاهئِ کښ ننوزِي ۲۵ ځکه چه زيات آسان دِي چه اوښ دَ ستني
له سومه تير شِي له دي نه چه دنيادار دَ اَللّه په بادشاهئِ ننوزِي ـ
۲۶ ۲۶ دوي بيحده ډير حيران شول او ورته ئي ووِ چه بيا څوک خلاصيدلي شِي
۲۷ ۲۷ يسوع دوي ته نظر وکه و ئي ويل چه په نزد دَ سړو ناممکن دِي مګر
۲۸ په نزد دَ الله نه دِي هر څه په نزد اَللّه ممکن دِي ۲۸ بيا پَطرَس په ويلو
۲۹ لګيا شه چه ګوره موږ هر څه ترک کړل او په تا پسي راغلي يُو ۲۹ يسوع
وويل چه زه تاسي ته رښتيا وايم چه داسي هيڅوک نشته چه ده کور
يا ورونړه يا خويندي يا مور يا پلار يا اولاد يا پټي ځما او دَ انجيل دَپارَ
۳۰ ترک کړل ۳۰ بي له دي نه چه اوس به په دي وقت کښ سل چنده وموِي
کورونه او ورونړه او خويندي او مېندي او اولاد او پټي سره له ربړونو
۳۱ او په راتلونکي جهان کښ به ابدِي ژوندون ۳۱ مګر ډير روميني به ورستني
شِي او ورستني به وړمبني شِي
۳۲ ۳۲ او دوي په لاري اورشليم ته ختل او يسوع له دوي نه دَ وړاندِ ته
نو حيران شول او هغه چه ده پسي تلل ويريدل بيا ده هغه دوولس
واخستل او هر څه چه په ده راتلونکي وُو دَ هغو په بيان کولو ورته لګيا شه
۳۳ ۳۳ چه ګورئِ موږ اورشليم ته ځو او اِبنِ آدم به دَ کوهنانو سردارانو او کاتبانو
ته وسپارلي شِي او هغوي به دَده په مرګ حکم وکړي او غير قومونو ته

به يُ وسپارِي ۳۴ او هغوي به په ده پورِئ ټوقي وکړي او ورباندِ به تُوکي او ۳۴
په کروړو به يُ ووهِي او مړ به يُ کړي او په دريمه ورځ به پـورته شِي
۳۵ او يَعقُوب او يُوحَنّا دَ زُبدِي ځامن ور ته راغلل اوور ته وئ ۳۵
ويل چه اي اُستاذه غواړو چه څه له تا نه سوال وکړو ځمونږ دَپارَ يُ وکړه
۳۶ ده ور ته وويل چه څه غواړئِ چه زهٔ هغه ستاسو دَپارَ وکړم ۳۷ دوي ۳۶ ۳۷
ور ته وويل چه مونږ ته راکړه چه مونږ ستا په لوئِي کښ يَو ستا په ښي
لورِي او بل دِ په کينړ لورِي کښينو ۳۸ يسوع ور ته وويل چه تاسونه پوهيږئِ ۳۸
چه څه سوال کوئِ هغه پياله چه زه يُ څښم تاسو يُ څښلي شئِ څه؟ او يا هغه
بپتسما چه زه پرِ بپتسمه کيږم تاسو پرِ بپتسمه کيدي شئِ څه؟ ۳۹ دوي ووِ چه هو توانيږو ۳۹
بيا يسوع ور ته ووِ چه هغه پياله چه زه يُ څښم تاسو به يُ وڅښئِ او
هغه بپتسما چه زه پرِ بپتسما کيږم تاسو به پرِ بپتسما شئِ ۴۰ مگر کښيناستل ۴۰
ځما په ښي او په کينړ لورِي ځما په اختيار کښ نه دِي چه ور يُ کړم
مگر هغو ته چه دَ هغه دَپارَ طيار کړي شوي دي ۴۱ او هر کله چه لسو ۴۱
واوريدل نو په يَعقُوب او په يُوحَنّا خپه شول ۴۲ او يسوع هغوي را وبلل ۴۲
او ور ته وئ ويل چه تاسو پوهيږئِ چه هغوي چه دَ غير قومونو حاکمان
شميرلي شِي په هغو باندِ خاوندي کوِي او غټان دَ هغو په دوي باندِ
سردارِي کوِي ۴۳ مگر ستاسو په مينځ کښ داسي نه دِي بلکه هرڅوک ۴۳
چه غواړِي چه ستاسو په مينځ کښ لوي شِي ستاسو خدمتکار دِ شِي ۴۴ او ۴۴
هرڅوک چه تاسو کښ غواړِي چه په ورانِدِ شِي هغه به دَ ټولو غلام شِي
۴۵ ځکه چه اِبنِ آدم دَپارَ دَدي راغلي نه دي چه دَده خدمت وکړي شِي ۴۵
بلکه چه خدمت وکړِي اوخپل ځان دَ ډيرو په فديه کښ وښندِي
۴۶ بيا دوي اَريحا ته راغلل او چه هغه دَ خپلو شاگردانو سره او يو ۴۶
لوي ټولي له اَريحا نه بهرووت نو برتِمي ځوي دَ تِمي چه يَو ړوند فقير وه به
لارِي کښ ناست وه ۴۷ او چه ده واوريدل چه دا نصرانِي يسوع دي نو په ۴۷
نارو وهلو لگيا شه و يُ ويل چه اي يسوع دَ داؤد ځويه په ما باندِ رحم وکړه

٤٨ ٤٨ او ډېرو وترټله چه چپ شه مګر هغه لا ډېر فرياد وکه چه اي دَ
٤٩ داؤد ځويه په ما باندِ رحم وکړه ٤٩ پس يسوع ودريده و ئي ويل چه هغه
راوبولئِ او هغو هغه ړوند را وباله او ورته و ئي ويل چه خاطرجمع لره
٥٠ پورته شه بولي دِ ٥٠ هغه خپل کند وغورزاوه ټوپ ئي وواهه يسوع ته
٥١ راغي ٥١ او يسوع ورته وويل چه څه غواړي چه زه ئي در سره وکړم هغه
٥٢ ړانده وويل چه اي ربّوني دا غواړم چه زه بينا شم ٥٢ يسوع ورته
وويل چه ځه خپل ايمان دِ خلاص کړي يي پس هغه
دم بينا شه او په لارِ په ده پسي روان شه ✣

# يوولسم باب

١ ١ او هر کله چه اورشليم ته نژدي په بَيْتِ فَګا او بَيْتِ عِنيي ته دَ زيتون
٢ دَ غره خواته ورسيدل نو له خپلو شاګردانو نه ئي دوه تنه واستول ٢ او
ورته و ئي ويل چه دي کلي ته چه ستاسو په مخامخ دي ورشئِ او هغه
دم چه ورننوزئِ نو يو کوچي به تړلي بيامومئِ چه هيڅ سړي په هغه سور
٣ شوي نه دي پرانئ نزئِ او رائي ولئِ ٣ او که څوک درته ووايي چه ولي
دا هسي کوئِ نو ووايئِ چه خداوند دده اِحتياج لري او دستي به ئي دلي
٤ را واستوي ٤ پس دوي لاړ شول او يو کوچي ئي دَ دروازي نه بهر په لاري
٥ کښ تړلي بياموند او هغه ئي پرانست ٥ او ځنو له هغو نه چه هلته
٦ ولاړ وُو ورته و ئي ويل چه دا څه کوئِ چه کوچي پرانزئِ ٦ دوي هغه
شان لکه چه يسوع ورته ويلي وُو هغو ته ئي وويل او هغو دوي
٧ پريښول ٧ او هغه کوچي ئي يسوع ته راوست نو خپلي جامي ئي پرِ واچولي او
٨ پرِ سور شه ٨ او ډېرو خپلي جامي او نورو دَ ونو ښاخونه چه له پټو ئي
٩ پريکړل په لارکښ ئي ورته وغوړول ٩ او هغوي چه دَده دَ وړاندِ او دَ
ورستو تلل په نارو سره ئي ويل چه هوشَعنا مبارک دِ وي هغه چه دَ خداوند
١٠ په نامه راځي ١٠ مبارک دِ وي بادشاهي ځمونږ دَ داؤد پلار هوشَعنا په اَعلَي
اُلعليّين

۱۱ ۱۱ او دي اورشلیم ته په هیکل کښې ننوت او چاپېره دَ ټولو څیزونو ئې وکتل
اوچه وخت دَ ماښام شه نوله هغو دولسو سره بَیتِ عِنیي ته بهر لاړ
۱۲ ۱۳ ۱۲ او صبا چه بَیتِ عِنیي نه بهر لاړل نو وږي شه ۱۳ اوچه له لرې ئې
دَ یَوه اِنځر ونه په پاڼو کوره ولیده نو ورروان شه چه کُنِې څه به په کښې
وموُمي اوچه ورغي نو بې له پاڼوئې نور هیڅ بیا نه موندل ځکه چه موسم
۱۴ دَ اَنځیرو نه وه ۱۴ او ده ورته ووېل چه پس له دې دِ تر ابده پورې هیڅوک
له تا میوه ونه خورِي او شاګردانو ئې دا واورېده
۱۵ ۱۵ او دوي اورشلیم ته راغلل او دي په هیکل کښې ننوت او دَ هغو
په یستلو چه په هیکل کښې خرڅول او پېرودل کول لګیا شه او تختي دَ صرافانو
۱۶ او کُرسَيِ دَ کوَنترو خرڅونکو ئې وارولې ۱۶ او هیڅوک ئې نه پرېښودل چه
۱۷ له لوښي سره په هیکل کښې تېر شي ۱۷ او هغو ته ئې په تعلیم کښې
ویل چه دا لیکلي شوي نه دِي څه؟ چه زما کور به دَ ټولو قومو دَ دُعا
۱۸ کور بللَی شي مګر تاسو هغه دَ غلو غار جوړ کړي دَي ۱۸ او سردار
دَ کوهینانو او کاتبانو چه دا واورېدل نو دَده په تلاش کښې شول چه
دَي به څنګه هلاک کړِي ځکه چه له ده وېرېدل له دې سبَبَ چه ټول
خلق دَده تعلیم ته حیران شوِي وُو
۱۹ ۱۹ اوچه ماښام کېده نو دي به له ښهر نه بهر ووت
۲۰ ۲۰ او صباچه دوي تېر شول نو هغه دَ اَنځِیر ونه ئې ولیده
۲۱ چه له بېخه وچه شوې وه ۲۱ نو پَطرَس ته ور په یاده شوه وئې ویل
چه اي اُستاذه ګوره هغه دَ اَنځِیر ونه چه تا لعنت ورته کړي وه
۲۲ وچه شوي ده ۲۲ یسوع په ځواب کښې ورته ووېل چه په اَللهِ ایمان
۲۳ ولرئِ ۲۳ زه تاسي ته رښتیا وایم چه هرڅوک چه دې غره ته
ووایِي چه پورته کړي شه او په دریاب کښې وغورزولې شه او په خپل
زړه کښې شک را نه وړِي بلکه ایمان لرِي چه هغه څه چه ئې
۲۴ وائِي پوره به شِي نو هغه به بیاموِي ۲۴ له دې سبَبَ زه تاسو ته

وایم چه هرڅه چه تاسي يې په دُعا غواړئِ او سوال کوئِ او ایمان لرئِ چه هغه مو
۲۵ موندلې دَي نو تاسو له به وشي ۲۵ او هر کله چه دَ دَعا کولو دَپارَ ودرېږئِ نو
که څري له چا سره مخالفت لرئِ هغه عفوه کړئ دي دَپارَ چه پلار ستاسو چه په
آسمانونو کښ دَي ستاسو تقصیرونه به هم تاسوته عفوه کړي
۲۷ ۲۷ دوي بیا اورشلیم ته راغلل اوچه دي په هیکل کښ ګرزیده نو سرداران
۲۸ دَ کوهنانو او کاتبان او سپین ږیري ورته راغلل ۲۸ او ده ته ئي وویل چه ته دا
کارونه په کوم اختیار سره کوي او چا دا اختیـار تا ته درکړي دَي
۲۹ چه دا کارونه کوي ۲۹ یسوع ورته وویل چه زه له تاسو نه دَ یوې خبري سوال کوم او
ځواب راکړئِ نو زه به هم تاسوته ووایم چه په کوم اختیار سره زه دا کارونه
۳۰ ۳۱ کوم ۳۰ بپتسما دَ یُوحَنا له آسمانَ وه که له سړو ځواب راکړئِ ۳۱ او هغو په
خپل مینځ کښ سره فکر کاوه ویل ئي چه که څري ووایُو چه له آسمانَ وه نو
۳۲ دي به راته ووایي چه ولي مو په هغه ایمان رانه وړ ۳۲ اوکه ووایُو چه له
۳۳ سړیو وه نو له قومه ویریدل څکه چه یُوحَنا ټولو برحق پیغمبر ګاڼه ۳۳ پس
یسوع ته ئي په ځواب کښ وویل چه مونږ نه پوهیږو یسوع هم ورته وویل
چه زه هم تاسو ته نه وایم چه په کوم اختیار سره دا کارونه کوم +

# دولسم باب

۱ ۱ او ده په متلونو هغو ته په خبرو شروع وکړه چه یوه سړي دَ انګورو باغ
نهال کړ او چار ئي پېر وګرزاوه. او دَ انګورو دَ مړلو دَپارَ ئي یو تالاو وکنوده
۲ او برج ئي جوړ که او باغوانانو ته ئي وسپاره او دي بل ملک ته لاړ ۲ او
په موسم کښ ئي یو مړي هغو باغوانانو ته ورواستوه دي دَپارَ چه دي
۳ له هغو باغوانانو نه دَ باغ دَ انګورو له میوو نه واخلي ۳ مګر هغو دي ونیو
۴ و ئي واهه او تش لاس ئي واستاوه ۴ بیا ئي دوي ته بل مړي واستاوه دَ هغه
۵ ئي هم سر مات که او ډیر ئي سپک که ۵ بیا ئي بل ورواستاوه هغه ئي
۶ مړ که او نور ډیرځني ئي له هغو ووهل او ځني ئي سره کړل ۶ اوس دَ هغه
یو محبوب ځوي وه په آخر ئي هغه ورواستاوه و ئي ویل چه دَ ځوي عِزّت به

ږِم وکړِي ٧ مګر هغو باغوانانو په خپل مینځ کښِ سره وویل چه دا هغه وارث ٧
دي راځئ چه مړ ئې کړو او میراث به ځمونږ شي ٨ پس هغه ئې ونیو او ٨
مړ ئې که او له باغَ ئې بهر وغورزاوه ٩ نو دَ باغ خاوند به څه وکړِي هغه ٩
به راشِي او باغوانان به هلاک کړِي او باغ به نورو ته ورکړِي ١٠ کنړه تاسو ١٠
دا صَحیفي نه دِي لوستلِي څه ؟

هغه کاڼِي چه مِعمارانو رد که

هم هغه دَ کُنج سر شه

١١ دا کار له خداوندَ وشه ١١

اوځمونږ په سترګو کښ عَجِیب دي

١٢ او هغوي ذ ده نِیسوِل وغوښتل مګر له خَلقو نه ویریدل ځکه چه دوي ١٢
پوه شول چه دا متل ئې دَدوي په باب کښ ووایه او دي ئې پرِیښود او لاړل
١٣ او څو تنه ئې له فَرِیسیانو او له هیرودیانو نه ور واستول چه ١٣
دي په خبرو کښ ونښلوِي ١٤ او چه هغه ورغلل ورته وئې ویل چه ١٤
اي اُستاذه مونږ ته معلومه دَه چه ته رښتني يي او دَ هیچا پروا نه لري
ځکه چه ته دَ سړو مخ نه ګوري بلکه دَ اَللّٰه لاري په رښتیا سره ښيي نو
قَیصَر ته جُزیه ورکول روا دِي که نه ١٥ مونږ ئې ورکړویامونږ ورنه کړومګر دَي دَ ١٥
دوي په ریاکارِي پوه شه ورته وئې ویل چه ما ولي ازمائِي یَو دِینار ما له
راوړئِ چه زه ئې وګورم ١٦ هغو راوړ او ده ورته وویل چه دا صُورت او ١٦
دا ضرب دَچا دِي هغو ورته وویل چه دا دَ قَیصَر ١٧ یسوع ورته وویل چه ١٧
دَ قَیصَر څِیزونه قَیصَر ته او دَ اَللّٰه څِیزونه اَللّٰه ته ورکوئِ او هغوي ده ته
ډیر تعجب وکه

١٨ او صُدوقیان چه وايِي چه قیامت نشته ور ته راغلل اوپوښتنه ١٨
ئې ورنه وکړه وئې ویل ١٩ چه اي اُستاذه مُوسیٰ ځمونږ دَپارَ ولِیکل چه که ١٩
چېرِي دَچا ورور مړ شي او ښځه ترِ پاتِي شي او اولاد پري نږدِي نو هغه
ښځه دِ دَ هغه ورور واخلِي او دَ ورور دَپارَ دِ اولاد پیدا کړي ٢٠ نو اووه ٢٠

۲۱ ورونږ وُو اوّل يَوه ښځه واخستله او بي اولاده مړ شه ۲۱ بيا دويم
۲۲ واخستله نو مړ شه اولاد ترِ پاتي نه شه او هم دارنګه دريم ۲۲ او هغو اووو
۲۳ وارو اولاد پرې نه ښود پس له ټولو نه هغه ښځه هم مړه شوه ۲۳ په قيامت
کښ به له هغوي نه هغه دَ چا ښځه وِي ځکه چه دغه خو دَ هغو اووو وارو
۲۴ ښځه وه ۲۴ يسوع ورته ووېل چه تاسو ګمراه نه يئ څه؟ له دي سَبَبَ چه
۲۵ نه په صَحِيفو او نه دَ اَللّٰه په قدرت پوهيږئ ۲۵ ځکه چه هغه وقت چه له
مړيو پورته شي نو نه به واده وکړي او نه به واده کړي شي بلکه دَ آسمانونو
۲۶ دَ فرښتو په شان دِي ۲۶ او دَ مړيو په بابت چه پورته کيږي تاسو دَ مُوسیٰ
په کتاب کښ لوستلِي نه دِي څه؟ چه ځنګه په بوټي کښ اَللّٰه له ده سره خبري
وکړي وئي ويل چه زه دَ اَبرَاهام اَللّٰه او دَ اِسحَاق اَللّٰه او دَ يَعقُوب اَللّٰه يم
۲۷ ۲۷ هغه دَ مړو اَللّٰه نه دي بلکه دَ ژوندو دي تاسي ډير ګمراه شوي يئ
۲۸ ۲۸ او يَوه له کاتبانو چه دَ دوي بحث ئې واوريده او پوه شه چه ښه
ځواب ئې ورکړ نو ورته راغي او له ده ئې سوال وکه چه دَ ټولو نه اوّل کوم
۲۹ يَو حکم دي ۲۹ يسوع ځواب ورکه چه اوّل دا دي اَي اِسرائيلَ واوره خداوند
۳۰ اَللّٰه خموږ يَو خداوند دي ۳۰ او ته له خداوندَ خپلَ اَللّٰه سره په خپل ټول
۳۱ زړه او په خپل ټول ځان او په خپل ټول عقل او په خپل ټول قوت مِينه کوه ۳۱ دويم دا دي
چه له خپلَ ګاونډِي سره دَ خپل ځان په شان مِينه کوه له دغو نه زيات
۳۲ بل حکم نشته ۳۲ او هغه کاتب ده ته ووېل چه اَي اُستاذ آفرين رښتيا
۳۳ دِ ووېل چه يَو دي او بي له ده بل نشته ۳۳ او له ده سره مِينه کول په
ټول زړه خپل او په ټول فَهم او په ټول قُوّت او له خپله ګاونډِي سره دَ خپل
ځان په شان مِينه کول له ټولو سوزونکيو قربانيو او ذَبحو نه زيات دي -
۳۴ ۳۴ او چه يسوع وليد چه په پوهه سره ئې ځواب راکه نو ورته وئي ويل چه ته
دَ اَللّٰه له بادشاهئ نه لري نه يي او پس له هغه هيچا زړه ورتوب و نه کړ
چه له ده نه سوال وکړي
۳۵ ۳۵ نو يسوع په ځواب کښ ورته ووېل چه ده په هيکل کښ تعليم ورکاوه

٣٦ چه کاتبان ولي وائي چه مسیح دَ داؤد ځوي دَي ٣٦ داود په خپله په رُوحِ القُدُس
کښ وویل چه

خداوند ځما خداوند ته وویل
چه ځما په ښي لاس کښینه
ترهغه پوري چه زه ستا دُښمنان ستا دَ پښو لاندِ تکیا کړم

٣٧ ٣٧ پس چه داؤد په خپله ده ته خداوند وائي نوځنګه دَ هغه ځوي دي؟ او
عامو تولیو دَده خبره په خوشحالئِ سره اوریدله
٣٨ ٣٨ او ده په خپل تعلیم کښ ورته وویل چه له کاتبانو نه احتیاط وکړئ
٣٩ ولي چه په اوږدو جامو کښ ګرزي او په بازارونو کښ تعظیمونه ٣٩ او په جماعتونو
٤٠ کښ اوّل ځایونه او په میلمستیا اوله تکیه غواړي ٤٠ اوچه کورونه دَکونډو نغړي او
نمونځ په ریاکارئِ سره اوږدَوي دوي به ډیر زیات عدالت بیاموي
٤١ ٤١ او بَیتُ المال ته مخامخ ناست وه او کتل ئي چه ځنګه په
٤٢ بَیتُ المال کښ پیسي اچوي او ډیرو دولتمندو به ډیري په کښ اچولي ٤٢ او
یَوه غریبه کونډه راغله دوه دمړئِ ئي په کښ واچول چه نیمه پیسه کیږي -
٤٣ ٤٣ ده خپل شاګردان راوبلل ورته و ئي ویل چه زه تاسو ته رښتیا وایم چه
دي کونډي غریبي له هغو تولو نه چه په بَیتُ المال کښ ئي واچول زیات ئي
٤٤ اچولِ دِي ٤٤ ځکه چه هغو تولو له خپلَ ډیروالي نه واچول مګر دې له
خپلي غریبئ نه هر څه چه ئي لرل وائي چول یعني خپله تولة روزي +

## دیارلسم باب

١ ١ او چه له هیکله راووت نو یَوه له شاګردانو ئي ورته و ویل چه اي
٢ اُستاذه وګوره چه دلته ځنګه کاڼي او ځنګه عِمارتونه دِي ٢ یسوع ورته
وویل چه تاسو دا لوي عِمارتونه وِینئِ څه؟ یَو کاڼي به په بل کاڼي
پري نه ښودلي شي چه به ونه نړاوه شي
٣ ٣ او چه دي دَ زیتُون په غره باندِ هیکل ته مخامخ ناست وه نو پَطرُس
٤ او یَعقُوب او یُوحَنّا او اَندرِیاس له ده نه پټه پوښتنه وکړه ٤ چه موږ خبر

کره چه دا به کله وشي او نښه دَ دغو څیزونو دَ ختم کیدلو به څه وي ؟ -
٥ ٦ ۵ یسوع په ویلو ور ته لګیا شه خبردار چه څوک مو ګمراه نه کړي ٦ ډیر
٧ به څما په نامه راشي او وبه وائي چه زه یم او ډیر به وغلوي ٧ او هرکله
چه جنګونه او آوازه دَ جنګونو واورئ نو مه ویریږئ ځکه چه دَ دي څیزونو
٨ واقع کیدل ضرور دي لیکن لا تر اوسَ آخرت نه دي ٨ قوم به په قوم او
بادشاهت به په بادشاهت وخیژي او په ځنو ځایونو کښ به زلزلي شي او
٩ قحطونه به شي دا دَ دردونو شروع ده ٩ مګر تاسو په خپلو ځانونو
خبردار اوسئ ځکه چه هغوي به تاسو جرګو ته وسپاري او په
عبادتخانو کښ به ووهلي شئ او دَ حاکمانو او دَ بادشاهانو په مخ کښ به
١٠ څما په سببَ ودرولي شئ دي دَپارَ چه په دوي باندِ شاهدي شي ١٠ مګر اول
١١ دا ضرور دي چه په ټولو قومو کښ دَ اِنجیل وعظ وکړي شي ١١ او چه تاسو
بیاپي او وموسپاري نو پخوا اندیښنه مه کوئ چه څه به وائي بلکه هغه
څه چه په هغه ساعت کښ تاسو ته درکړي شي هم هغه وایي له دي سببَ
١٢ چه تاسو ویونکي نه یئ بلکه هغه رُوحُ القُدُس ١٢ او ورور به ورور او پلار
به ځوي مرګ ته وسپاري او اولاد به دَ مور او دَ پلار په خلاف پورته شي
١٣ او قتل به ئي کړي ١٣ او څما دَ نُوم په سببَ به له ټولو خلقو نه کینه
کړي شئ مګر هغه څوک چه تر آخره پوري ئي وزغمي خلاص به شي
١٤ ١٤ او هر کله چه تاسو هغه دَ ویرانئ نجس څیز چه هلته ئي
ودریدل بایده نه دي ووینئ (لوستونکي دِ وپوهیږي) نو هغوي چه په یهُودیه
١٥ کښ وي غرونو ته دِ وتښتي ١٥ او هغوي چه په کوټه باندِ وي لاندِ دِ نه کوزیږي
١٦ او دَ څه اخستلو دَپارَ دِ خپل کور ته نه ننوزي ١٦ او هغوي چه په پټي کښ
١٧ وي نو دَ خپلي جامي اخستلو دَپارَ دِ پسته نه ګرزي ١٧ مګر په هغو ورځو
١٨ کښ هئي به باردارو او په یئ ورکونکیو ١٨ او دُعا کوئ چه په ژمي کښ
١٩ ونه شي ١٩ ځکه چه په هغو ورځو کښ به دا رنګه ربړ راشي چه له اول دَ
٢٠ پیدائښت چه الله پیدا کړل تر اوسَ پوري شوي نه دي او نه به وشي ٢٠ او

که چرې هغه ورځې خداوند لنډې کړې نه وې نو هیڅ بشر به خلاص شوې نه
وه مګر د هغو غورو شوو په خاطر چه ده غوره کړي دي هغه ورځې يې
لنډې کړې ٢١ او که هغه وقت څوک تاسو ته ووايي چه ګوره مسيح دلې يا ٢١
ګوره هورې دې مه يې منئ ٢٢ ځکه چه دروغژن مسيحيان او دروغژن نبيان ٢٢
به پورته شي او دا نکه نښې او کرامات به ښکاره کړي چه که ممکن وي
نو غوره شوي به هم ګمراه کړي ٢٣ مګر تاسو خبردار شئ ګوره ما تاسو ته ٢٣
د دې ټولو څيزونو خبر وړاندې درکړې دی
٢٤ ليکن په هغو ورځو کښې به پس له هغه بدې نمر تياره شي او ٢٤
سپوږمۍ به خپله رڼا ورنه کړي ٢٥ او ستورې به له آسمانه راپريوزي او ٢٥
قوتونه د آسمانونو به وخوځولي شي ٢٦ او هغه وقت به ابن آدم ٢٦
د لوې قدرت او له جلال سره په اوريځو راتلونکې ووينئ ٢٧ او هغه ٢٧
وقت به خپلې فرښتې واستوي او خپل غوره شوي به له څلورو هواو د
زمکې له يوې حده د آسمان تر بله حده پورې سره راټول کړي
٢٨ پس تاسو د انځير د ونې يو مثل زده کړئ هغه وقت چه ښاخونه ٢٨
يې نرم شي او پاڼې يې زرغونيږي نو تاسو پوهيږئ چه اوړې نژدې دی ٢٩ هم ٢٩
هسې چه تاسو دا څيزونه کيدونې ووينئ نو پوه شئ چه هغه نژدې بلکه په
دروازه دی ٣٠ زه تاسو ته رښتيا وايم چه دا پيړۍ به تيره نه شي څو چه ٣٠
دا څيزونه ونه شي ٣١ آسمان او زمکه به لرې شي ليکن زما کلامونه به لرې ٣١
نه شي ٣٢ او د هغې ورځې او د هغه ساعت په باب کښې هيڅوک خبر ٣٢
نه دی نه فرښته په آسمان کښې او نه ځوې بې له پلاره ٣٣ خبردار ٣٣
شئ بيدار اوسئ او دعا کوئ ځکه چه تاسو خبر نه يئ چه هغه وقت کله
دی ٣٤ لکه يو مسافر سړې چه خپل کور پريښود او خپلو غلامانو ته يې ٣٤
اختيار ورکړ او هر يوه ته يې خپل خپل کار ورکه او دروان ته يې حکم وکړ
چه بيدار اوسه ٣٥ پس تاسو هم بيدار اوسئ ځکه چه تاسو خبر نه يئ ٣٥
چه د کور خاوند به کله راشي په ماښام يا په نيمه شپه يا په چرګ بانګ

٣٦ ٣٧ يا صبا ٣٦ هسې نه چه ناڅاپه راشي او تاسو اوده بيامومي ٣٧ او هرڅه
چه زه ئې تاسو ته وايم ټولو ته ئې وايم چه بيدار اوسئ ❊

## څورلسم باب

١ ١ پس له دوو ورځو اختر دَ فسح او دَ فطيرو وه او سرداران دَ کوهينانو
او کاتبان دي لټول چه څنګه دې په چل سره ونيسي او
٢ مړ ئې کړي ٢ ليکن ويل ئې چه دا دِ په اختر کښ نه وي هسې نه چه
په خلقوکښ فساد پورته شي
٣ ٣ او چه دې په بيت عنيه کښ دَ شمعون کوړي په کور کښ په خوراک
ناست وه نو يوې ښځې دَ نبلي دَ زخامو له ګران بها او دَ خالصو عطرو دَ سنبلو
٤ راوړه او هغه دَ نبلي ئې مات که او دَ هغه په سر ئې توي کړل ٤ او ځيني خپه
٥ شول په خپل منځ کښ وئې ويل چه ولې دا عطر ضايع شول ٥ ځکه چه دا عطر به زيات له
دريو سوو دينارو خرڅ شوي وو او غريبانو ته به ورکړي شوي وو او دي
٦ ورته وغړنبيدل ٦ مګر يسوع ورته وويل چه پرې ئې ږدئ ولې ئې خپه کوئ
٧ له ما سره ئې نيک کار کړي دى ٧ غريبان تل له ځان سره لرئ او هر وقت
٨ چه غواړئ له دوي سره ښه کولي شئ مګر ما تل له ځان سره نه لرئ ٨ هر
٩ څه چه ئې لرل وئې کړل دي وړاندِ ئې بدن غوړ کړ دَ ښخولو دَپاره ٩ او زه
تاسو ته رښتيا وايم چه په ټوله دُنيا کښ هر ځاي چه دَ دي اِنجيل وعظ
کړي شي دا کار هم چه دې ښځې کړي دي دَ دې دَ يادګارئ دَپاره به ويلي شي
١٠ ١٠ او يهودا اِسخريوطي چه يو له دوولسو نه وه دَ کوهينانو سردار[انو]
١١ ته ورغي دي دَپاره چه هغه دوي ته وسپاري ١١ او هغوي چه دا واوريدل نو
خوشحال شول او له ده سره ئې دَ روپيو ورکولو وعده وکړه او ده طلب کاو
چه څنګه به دې په ښه وار وسپاري
١٢ ١٢ او دَ فطيرو په اوله ورځ چه دوي دَ فسح قرباني کولې نو شاګردانو
ئې ورته وويل چه چرته غواړې چه مونږ لاړ شو او تيارې وکړو چه ته فسح وخورې
١٣ ١٣ او له خپلو شاګردانو ئې دوه تنه واستول او ورته وئې ويل چه ښهر

ته لاړ شئ او يَو سړي به مَنګي اخستي په مخ درشي تاسو به هغه پسي ځئ ۱۴ او ۱۴
هر ځاي ته چه هغه ننوزي نو تاسو دَ هغه کورخاوند ته ووايئ چه اُستاذ
وائي چه مهمانخانه ځما چرته ده چه زه هلته له خپلو شاګردانو سره فسح وخورم-
۱۵ او هغه به تاسو ته لويه بالاخانه فرش کړي او تياره در وښيي په هغي کښ ځمونږ ۱۵
دَپارَ تياري وکړئ ۱۶ او دَده شاګردان بهر لاړل ښهر ته ورغلل او په څه شان چه ۱۶
ئې دوي ته ويلي وُو هغه طور ئي ومونډل او فسح ئي تياره کړه
۱۷ او چه ماښام شه نو له هغو دولسو سره راغي ۱۸ او چه دوي کښيناستل ۱۷ ۱۸
او ډوډي خوړه نو يسوع وويل چه زه تاسو ته رښتيا وايم چه يَو له تاسو نه چه له
ما سره ډوډئ خوري هم هغه به ما وسپاري ۱۹ دوي غمجن شول يَوه يَوه ورته ويل ۱۹
چه زه يم څه؟ ۲۰ ده ورته وويل چه يَو له دي دولسو دَي چه له ما سره په تالکي ۲۰
کښ لاس ډوبوي ۲۱ ځکه چه اِبنِ آدم هغه شان ځي لکه چه دَده په باب کښ ليکلي دي ۲۱
خو مګر هغي په هغه سړي چه دَ هغه په وسيله سره اِبنِ آدم سپارلي شي هغه سړي
ته غوره وه چه پيدا شوي نه وَي
۲۲ او چه دوي خوړل نو ډوډئ ئي واخستله بَرَکَت ئي ورکړ ماته ۲۲
ئي کړه او دوي ته ئي ورکړه او وِ ئي ويل واخلئ دا ځما بدن دَي ۲۳ او پياله ۲۳
ئي واخستله چه شکر ئي وکړ هغوي ته ئي ورکړه او ټولو له هغي نه
وڅکل ۲۴ او ورته وِ ئي ويل چه دا دِي ځما وِيني دَ وعدي چه دَ ډيرو ۲۴
دَپارَ توئيږي ۲۵ زه تاسو ته رښتيا وايم چه پس له دي به دَ انګورو ۲۵
شيره هيڅ ري و نه څښم تر هغه ورځي چه په بادشاهئ دَ اَللّه کښ
ئي تازه وڅښم
۲۶ پس دوي يَو مزمور ووايه او دَ زيتون غره ته ووتل ۲۶
۲۷ او يسوع دوي ته وويل چه تاسو به ټول تيندک وخورئ ځکه چه ۲۷
ليکلي شوي دِي چه
زه به شپُون ووهم او ګډوري به تار په تار شي
۲۸ مګر پس له پورته کيدلو ځما له تاسو نه به وړنبي ګليل ته لاړ شم ۲۹ ليکن پَطرَس ۲۸ ۲۹

۳۰ ور ته وويل چه اګر که ټول تيندک وخوري مګر زه به و نه خورم ۳۰ يسوع ور ته
وويل چه زه تا ته رښتيا وايم چه نن ورځ به دي شپه کښ پخوا له هغه
۳۱ نه چه چرګ دويم وار بانګ کوي ته به دري واره له ما نه انکار وکړي ۳۱ مګر
هغه په ډير زور سره وويل فرض کړه که ځما مړکيدل له تا سره وي هيچري به
ستا انکار و نه کړم او هغو نورو ټولو هم داسي وويل
۳۲ ۳۲ پس دوي يوه ځاي ته چه ګتسيماني نوم ئي وه ورغلل او خپلو شاګردانو
۳۳ ته ئي وويل چه تاسو دلي کښينئ چه زه دُعا وکړم ۳۳ او پطرس او يعقوب او
يوحنا ئي له ځان سره واخستل او په حيرانئ کولو او په غمجنئ کولو سر شه
۳۴ ۳۴ او دوي ته ئي وويل چه ځما ځان تر مرګ پوري ډير غمګين دي تاسو دلي
۳۵ پاتي شئ او بيدار اوسئ ۳۵ او دي لږ څه وړاندِ لاړ او په زمکه پريوت او
۳۶ دُعا ئي وکړه چه که چري ممکن وي نو دا ساعت دِ له ما تير شي ۳۶ او وئي ويل
چه اي آبا پلاره هر څه تا ته ممکن دي دا پياله له ما تيره کړه مګر نه داسي چه
۳۷ زه ئي غوارم بلکه چه ته ۳۷ بيا دئ راغي او هغوي ئي اوده وموندل او پطرس
ته ئي وويل چه اي شمعونه ته اوده يي؟ يو ساعت نه توانيږي چه بيدار شي
۳۸ ۳۸ بيدار اوسئ او دُعا کوئ هسي نه چه تاسو په آزمائښت کښ پريوزئ روح خو
۳۹ تيار دي مګر جسم ضعيف دي ۳۹ او دي بيا لاړ او دُعا ئي وغوښتله هم دغه خبره
۴۰ ئي و ويله ۴۰ او چه پسته راغي هغوي ئي بيا اوده وموندل ځکه چه
۴۱ سترګي ئي درني شوي وي او نه پوهيدل چه ده ته څه ځواب ورکړي ۴۱ بيا
دريم وار راغي او ور ته وئي ويل چه اوس اوده اوسئ او آرام کوئ بس دي
۴۲ وقت راغي ګوره اِبنِ آدم دَ ګناهګارو لاسونو ته سپارلي کيږي ۴۲ پورته
شئ ځئ چه ځو ګورئ چه هغه ځما سپارونکي رانژدي شه
۴۳ ۴۳ او دي لا په دي خبرو کښ وه چه دستي يهودا چه يو له هغو
دوولسو نه وه راغي او ټولي ورسره وه له تورو او له لرګو دَ کوهنانو
۴۴ دَ سردارانو او دَ کاتبانو او دَ سپين ږيرو له طرفه ۴۴ او سپارونکي هغو ته
دا نښه ورکړي وه ويلي ئي وُو چه هغه چه زه ئي ښکل کړم هم هغه دي

٤٥ و يې نيسئ او په خبردارۍ سره يې بوزئ ٤٥ او هغه دستي ورته راغى او و
٤٦ ٤٧ يې ويل اى اُستاذ او ښكل يې كړ ٤٦ او هغو لاس پر واچاوه ويې نيوه ٤٧ او
يو له هغو چه هلته ولاړ وه تُوره يې ويستله او دَ سردار كوهن مريي يې
٤٨ وواهه او دَ هغه غوږ يې ورنه پريكړه ٤٨ او يسوع ځواب وركړ ورته ويې ويل چه
تاسو لكه دَ غله دَ نيولو دَپارَ ماته له تُورو او له لړو سره راغلي يئ څه ؟
٤٩ ٤٩ زه هره ورځ په هيكل كښې له تاسو سره وم تعليم مې دركاوه او نه مو نيولم ليكن ضرور
٥٠ دي چه صحيفې پوره شي ٥٠ او ټولو پريښود
٥١ ٥١ او يو ځوان چه كتاني څادر يې په برمنډ صورت چاپيركړي وه په
٥٢ ده پسې روان شه او ويې نيوه ٥٢ مګر هغه كتاني څادر ورپريښود برمنډ
وتښتيده
٥٣ ٥٣ پس يسوع يې سردار كوهن ته بوت چه ورسره ټول سرداران دَ
٥٤ كوهينانو او سپين ږيري او كاتبان جمع شوي وُو ٥٤ او پطرس لري لري ورپسې
ته چه دَ سردار كوهن غولي ته دننه ورغي او له خدمتكارانو سره كښيناست
٥٥ په اور توديده ٥٥ او سردار كوهنانو او ټولي جرګي په يسوع باندې شاهدي
٥٦ طلب كړه دي دَپارَ چه دي ووژني او نه يې موندله ٥٦ څكه چه اګر كه ډيرو
دَده په حق كښې دَ دروغو شاهدئ وكړې خو هم دَ هغو شاهدئ برابر نه
٥٧ وي ٥٧ او څو تنه پورته شول دَده په حق كښې يې دَ دروغو شاهدئ وكړې
٥٨ ٥٨ ويې ويل چه مونږ واوريدل چه ده ويل چه زه به دا په لاس جوړ
شوي مَقدِس وران كړم او په دريو ورځو كښې به بل بې لاسَ جوړ شوي بينا
٥٩ ٦٠ كړم ٥٩ په دې هم شاهدي دَ هغو برابره نه وه ٦٠ او سردار كوهن په مينځ
كښې پاڅيده له يسوع نه يې پوښتنه وكړه ويې ويل چه ته هيڅ ځواب نه كوې څه
٦١ دا څه دي چه ستا په حق كښې شاهدي وركوي ٦١ مګر دی چپ وه او هيڅ ځواب
يې ورنه كړ بيا سردار كوهن له ده نه پوښتنه وكړه ويې ويل چه ته مسيح ځوي دَ هغه
٦٢ مبارك يې څه؟ ٦٢ يسوع وويل زه يم او تاسو به اِبنِ آدم په ښي لاس دَ قدرت
٦٣ ناست او دَ آسمان په اوريځو به يې راتلونكي ووينئ ٦٣ پس سردار كوهن خپلي جامې

۶۴ څيرِي کړي او وَ ئي وِيل چه نورو شاهدانو ته څه حاجت لرو ۶۴ تاسو دَ ده
کُفر واوريده تاسو ته څنګه معلوميږي او هغو ټولو په ده حکم وکه چه لايق
۶۵ دَ مرګ دي ۶۵ او څنو دَ ټوکلو شروع وکړه او مخ ئي پټ که او په سُوکُونو
ئي واهه او ور ته به ئي وِيل چه نبوّت وکړه او دَ هغو نوکرانو په څپيړو
۶۶ وواهه ۶۶ او هر کله چه پَطرُس لاندِ په غولي کښ وه نو دَ سردار کوهِن
۶۷ له وِينځونه يَوه ورغله ۶۷ نو چه پَطرُس ئي وليد چه ځان ئي تودَاوه ورته وئي
۶۸ کتل او وَ ئي وِيل چه ته هم له نَصْرانِي يسوع سره وي ۶۸ مګر دي منکر
شه وَ ئي ويل چه زه نه پيژنم او نه پوهيږم چه ته څه وايي او بهر
۶۹ دَهليز ته ووت او چرګ بانګ ووايه ۶۹ بيا هغي وِينځي وليد هغو ته چه
۷۰ هلته ولاړ وُو وَ ئي وِيل چه دا سړي هم له هغو دي ۷۰ ده بيا انکار وکه
او پس له يَو ساعتَ بيا هغو خلقو چه هوري ولاړ وُو پَطرُس ته ئي وويل
۷۱ چه په رښتيا سره ته له هغو يي څکه چه ته هم جَلِيلِي يي ۷۱ مګر دي په
لَعْنَتْ ويلو او په قسم خوړلو لګيا شه چه زه هغه سړي چه تاسو ئي يادوئِ
۷۲ نه پيژنم ۷۲ ناګاه دويم وار چرګ بانګ ووايه او پَطرُس ته هغه خبره چه يسوع
ورته ويلي وه ور په ياد شوه چه ته به په خوا دَ چرګ دَدو واره بانګ کولو نه دري واره
له مانه انکار وکړي او چه دا ور په ياده شوه وَ ئي ژړل +

# پنځلسم باب

۱ ۱ او چه صبا شه نو دستي سردار دَ کوهينانو او سپين ږيرو او کاتبانو او
ټولي جرګي مصلحت سره وکړه او يسوع ئي وتاړه او بو ئي ته پِلاطُس ته ئي
۲ وسپاره ۲ او پِيلاطُس له ده نه پوښتنه وکړه چه ته دَ يَهُوديانو بادشاه يې
۳ څه؟ ده په ځواب کښ ورته وويل چه ته وايي ۳ او سردار کوهينانو په
۴ ده باندِ ډيري دعوي وکړي ۴ بيا پِيلاطُس له ده نه پوښتنه وکړه وئي ويل
۵ چه ته هيڅ ځواب نه ورکوي څه؟ ګوره څومره دعوی در باندِ کوي ۵ خو به دي
هم يسوع هيڅ ځواب ورنه که تر څو چه پِيلاطُس تعجب وکه
۶ ۶ او ده به په هر اختر يو قيدِي چه ترِ به ئي غوښت نو به ئي خلاصاوه

نو يَو چه بَرَابَا نوُم ئي وه له هغو باغيانو سره چه په بلوا کښ ئي خوُن
۸ کړي وه بندِي وه ۸ پس تولى ورغوت په غوښتنه سر شول چه دي نه
۹ هغوي سره دَ دستور په شان وکړي ۹ پيلاطُس په ځواب کښ ور ته وويل
۱۰ چه تاسو دا غواړئ چه زه دَ يَهُوديانو بادشاه درآزاد کړم ۱۰ ځکه چه دي پوهيده
۱۱ چه سردار کوهينانو دَ کينې له سَبَبَ را سپارلي دي ۱۱ ليکن سردار کوهينانو
۱۲ تولي ولمساوه چه دوي ته خوامخوا بَرَابَا آزاد کړي ۱۲ پيلاطُس بيا ځواب ورکړو ور ته
وويل چه زه له هغه سره چه تاسو دَ يَهُوديانو بادشاه ور ته وايئ څه
۱۳ وکړم ۱۳ هغو بيا ناري کړي چه په صَلِيب ئي کړه ۱۴ پيلاطُس ور ته وويل
چه ولي څه بدِ ئي کړي دَه مګر هغو لا په زيات سره ناري کړې چه په
۱۵ صَلِيب ئي کړه ۱۵ نو پيلاطُس دَ تولي خوښي وغوښتله دَ هغو دَپارَ ئي بَرَابَا
ور آزاد که او يسوع ئي په کوړو وواهه او و ئي سپاره چه په صَلِيب دِ
کړي شي

۱۶ ۱۶ او سپاهيانو دي هغه غولي ته چه پريتوريم نوُم ئي وه ورننه يست
۱۷ او تول سپاهيان ئي جمع کړل ۱۷ نو ارغواني جامي ئي ور واغوستولي
۱۸ او دَ اغزو تاج ئي اودلي ور په سر که ۱۸ او په سلام کولو ور ته لګيا
۱۹ شول چه اي بادشاه دَ يَهُوديانو سلام ۱۹ او په ډُرمي ئي په سر وواهه
۲۰ او پرِ به ئي دِرتوکلي او زنګنونه ئي لګول سجدي ئي ور ته کولي ۲۰ او پس
له دغو توقو کولو ئي هغه ارغواني جامي ي له ده نه ويستلي او خپلي ئي ور
واغوستولي او دَ صَليب کولو دَپارَ ئي بهر بوت

۲۱ ۲۱ او يَو شَمعُون نوُمي قُرينِي چه دَ اَسکَندَرَ او دَ رُوفس پلار وه
چه له ښهي نه راته او په هغه ځاي تيريده هغه ئي دَ صَليب پورته کولو
۲۲ دَپارَ په بيګار ونيو ۲۲ او دوي دَ ګلګتا ځاي ته راوست چه ترجمه کړي شوي
۲۳ دي دَ کَکرئ ځاي ۲۳ او له مُرو سره ګډ کړي شراب ئي ده ته ورکړه مګر ده قبول
۲۴ نه کړل ۲۴ او په صَليب ئي کړ جاي دَده ئي په خپل منځ کښ سره ووېشلي
۲۵ او هښک ئي پر واچاوه چه هر يَو څه واخلي ۲۵ او هغه وخت چه دي ئي

٢٥ په صَلِيب که دريم ساعت وه ٢٦ او تقصيرنامه دَده پاس ليکلي شوي وه
٢٦ چه بادشاه دَ يهُوديانو ٢٧ او هغو له ده سره دوه غله يَو دَده په ښي لاس
٢٩ او بل دَده په کيڼ لاس په صَلِيب کړل ٢٩ او تيريدونکيو په ښکنځل ور ته
کول او سرونه به ئي خوځول او ويل به ئي چه واه واه ته چه مَقدَس
٣٠ ويرانوي او په دري ورځي کښ ئي جوړوي ٣٠ خپل ځان خلاص کړه له صَلِيبَ
٣١ راکوز شه ٣١ هم په دي طَور سردار کوهنانو په کور کښ سره دَ کاتبانو
ټوقي سره کولي ويل ئي چه ده نور خلاصول دَ خپل ځان په خلاصولو
٣٢ توان نه لري ٣٢ مسيح بادشاه دَ اسرائيلو دِ اوس دَ صَلِيبَ راکوز شي
چه مونږ ئي ووينو او ايمان راوړو- او هغو هم چه له ده سره په صَلِيب
شوي وُو ښکنځل به ئي ور ته کول
٣٣ ٣٣ او چه شپږم ساعت راغلي وه نو تر نهم ساعتَ پوري په ټوله
٣٤ زمکه تياره شوله ٣٤ او په نهم ساعت کښ يسوع په لوي آواز سره ناري وکړي
چه اِلوِيْ اِلوِيْ لَمَا شَبَقْتَنِيْ چه ترجمه کړي شوي دَي اي ځما اَلله اي ځما اَلله ولي
٣٥ دِ زه پريښودلم ٣٥ او ځني چه نژدي ولاړ وُو چه ئي واوريدل نو وئي ويل
٣٦ چه کوريْ اِلياس ته ناري وهي ٣٦ او يَو په دَو لاړ اِسفَنج ئي له سرکي نه ډک
که او په دَرمه ئي ولګاوه په ده ئي وڅښوله او وئي ويل چه پرېږي ئي ږدئ
٣٧ چه مونږ ئي وينو چه اِلياس دَده دَ راکوزولو دَپارَ راځي ٣٧ بيا يسوع په لوي آواز
٣٨ سره ناره وکړه رُوح ئي وسپاره ٣٨ او دَ مَقدِس پرده له سَرَ تر پايه پوري دوه ځايه
٣٩ څيري شوله ٣٩ ليکن هغه صُوبدار چه مخامخ ور ته ولاړ وه او په دي شان
رُوح سپارل دَده ئي وليدل نو وئي ويل چه دا سړي په ريښتيا سره
٤٠ اِبنُ الله وه ٤٠ او هلته ځو ښځو له لري نه هم ور ته نظر کاوه او په هغو
٤١ کښ مريمه مجدلِيني او مريمه دَ کشر يعقوب او دَ يُوسي مور او سَلومي وي ٤١ چه
دي په جَلِيل کښ وه دده پيروي او خدمت ئي کاوه او هم نوري ډيري ښځي وي
چه له ده سره اورشليم ته ختلي وي
٤٢ ٤٢ او چه نماښام شه نو له دي سببَ چه دَ تيارئ يعني له

سَبَّت نه وړانــدِ وه ۴۳ نو یُوسف دَ اریمانِیّه چه عِزَّتناک وزیر او هم منتظر ۴۳
دَ بادشاهئ دَ اَللّه وه راغې په زړورتیا سره پیلاطُس ته ننه ووت او دَ یسوع جُسَّه
ئې تړِ وغوښتله ۴۴ او پیلاطُس تعجب وکه چه داسي زر مړ شه او هغه ۴۴
صُوبدار ئې را وباله او پوښتنه ئې تړِ وکړه چه لـه کلـه مړ شه ۴۵ او ۴۵
چـه لـه صُـوبـدار نـه خبـر شـه نوجُسَّه ئې یُوسف ته
ورکړه ۴۶ او هغه کَتـانِي جامه وپیرودله او دي ئې راکوز که په کُتانِي ۴۶
جامه کښ ئې ونغښت او په یَوه قبر کښ چه په کاڼي کښ کنودلي وه
کښیښوده او دَ قبر دروازي ته ئې یَو کاڼي ور ورغړاوه ۴۷ او مریمي مجدلینې ۴۷
او مریمي مور دَ یُوسِي هغه ولیدل چه دي ئې چرته ږدي وه ✣

# شپاړسم باب

۱ او هر کله چه سَبَّت تیر شه نو مریمي مجدلِینِي او مریمي دَ یَعقُوب مور ۱
او سلومي خوشبوئې وپیرودلي راغلي چه دي خوشبویه کړي ۲ او په اوّله ورځ ۲
دَ هفتي کښ وقتي په نمرخاته قبر ته ورغلي ۳ او په خپل منځ کښ ئې ۳
سره وویل چه څوک به دَ قبر له دروازي نه هغه کاڼي څمونږ دَپارَ ورغړوي
۴ او چه دوي پورته وکتل و ئې لیدل چه کاڼي رغړیدلي دي ځکه چه ډیر لوي ۴
وه ۵ او چه قبر ته دننه ورغلي نو یَو ځوان ئې ولیده چه په ښي طرف کښ ۵
ناست او سپینه جامه ئې اغوستي وَه نو دوي ویریدلي ۶ مګر هغه دوي ۶
ته وویل چه مه ویریږئ تاسي یسوع نَصْرانِي چه مَصْلُوب شوي دي لټوئ
هغه پورته شه دلې نشته وګورئ هغه ځاي چه چرته ئې دي ږدي وه-
۷ مګر تاسي ورځئ او شاګردان ئې او پَطرَس خبر کړئ چه دي له تاسو ۷
وړاندي جَلِیل ته ځي هلته به ئې ووینئ لکه چه تاسو ته ئې ویلي وه-
۸ نو ووتلي او له قبرَ وتښتیدلي ځکه چه لړزیدلي او حیراني دوي ونیولي ۸
او هیڅـا ته ئې څه نه ویل ځکه چه ویریدلي
۹ او چه په اوّل ورځ دَ هفتي سحر وقتي پورته شه نو اوّل مَجدلینې ۹
مریمي ته چه اووه دیوان ئې تړِ یستلي وُو ورښکاره شه ۱۰ او هغه لاړه او ۱۰

١١ هغوته چه ورسره شوي وُو چه وِير او ژړا ئي كوله خبر ئي كړل ١١ او هغوچه
را واوريدل چه دي ژوندي شوي دي او دي ته ښكاره شوي وُو باور ئي
و نـه كړ
١٢ ١٢ پس له هغه په بل شكل له هغو نه دووتنو ته چه گرزيدل او
١٣ دَ كِلي په طرف تلل ورښكاره شه ١٣ نو دوي ورغلل او هغه نور ئي خبر كړل
ليكن په دغو ئي باور ونه كړ
١٤ ١٤ او آخر هغو يوولسو ته چه په خوراک ناست وُو ورښكاره شه
او هغوي ئي دَ بي ايمانئ او دَ سختدلئ په سببَ ملامتَ كړل ځكه چه دوي په
هغه كسانُ چه دي ئي ژوندي پورته شوي ليدلي وُو يقين و نه كړ —
١٥ ١٥ پس ده هغوته وويل چه په ټول جهان كښ وگرزئ او ټولوخلقو ته دَ
١٦ اِنجيل وعظ كوئ ١٦ او هر څوک چه ايمان راوړي او بپتسما بيامومي هغه
١٧ به خلاص شي او هغه چه ايمان را نه وړي په هغه به حكم وشي ١٧ او
دا نښي به له مؤمنانو سره ځي چه دوي به څما په نامه ديوان وباسي او
١٨ په نوي ژبي به خبري كوي ١٨ ماران به پورته كوي اوكه زهر قاتل وڅكي هيڅ
ضرر به نه ور رسوي او چه په رنځورانو لاس كيږدي شفا به بيامومي
١٩ ١٩ او پس له دي خبروچه دوي سره ئي وكړي خداوند يسوع آسمان ته
٢٠ وخېژاولي شه او په ښي لاس دَ اَللهُ كښيناست ٢٠ بيا دوي بهر لاړل او په
هر ځاي كښ ئي وعظ كاوه او خداوند له دوي سره كار كاوه او په نښوچه
ورسره وي كلام ئي ثابت كاوه ÷ آمين ❋

# اِنجِیل دَ مقدّس لوقا

## اوّل باب

١ ١ له دي سببَ چه ډېرو لاس واچاوه چه هغه کار چه څموږ په مینځ
٢ کښې په یقین رسیدلي دي بیان یُ کړي ٢ لکه چه له اوله په خپلو سترګو
٣ لیدونکي او دَ کلام خادمان وُو موږ ته یُ ورساوه ٣ ما هم دا خوښه کړه
هغه ټول چه له اوله مِ په ډېر کوشش سره لټولي دِي او ستا دَپارَ یُ
۴ اي عزّتمندَ تیوفلسَ په ترتیب سره ولیکم ۴ دي دَپارَ چه ته حقیقت دَ
۵ هغو کلامونو چه تا زده کړي دِي وپېژنې ۵ دَ یهودیې دَ بادشاه هیرودیس
په ورځو کښې یو کوهین ذکریاه نومې دَ ابیاه له فریق نه وه او ښځه یُ له لوڼو
٦ دَ هارون نه وَه الیسباته نوم یُ وه ٦ او دوي دواړه په حضور دَ الله صادقان
٧ او په ټولو حکمونو او فرضونو دَ خداوند بې‌عیبَ تلونکي وُو ٧ او ځوي یُ نه وه
ځکه چه الیسباته شنډه وه او دوي دواړه دَ ډېرو ورځو وُو
٨ ٨ او داسې وشول چه ده دَ خپل فریق په وار دَ الله په حضور کار
٩ دَ کوهینۍِ کاوه ٩ نو دَ کوهینۍِ په دستور هِسک په ده پرېوت چه دَ خداوند
١٠ هیکل ته ور ننوزي او خوشبوئي وسیزي ١٠ او دَ خوشبوئي سیزلو په وقت ټول
١١ جماعت دَ قوم بهر نمونځ کاوه ١١ او یوه فرښته دَ خداوند ور ته ظاهره شوه
١٢ چه دَ خوشبوئي دَ مذبح په ښي طرف ولاړه وه ١٢ او چه ذکریاه ولیده وترسیده
١٣ او وېره پرِ غالبه شوه ١٣ فرښتي ور ته وویل اي ذکریاه مه وېرېږه ځکه چه ستا
دعا واورېدي شوه او ستا ښځه الیسباته به ستا دَپارَ یو ځوي راوړي او ته به
١۴ دَ هغه نومِ یوحنّا کیږدي ١۴ او خوښي او خوشحالي به دِ وِي او دَ هغه په پیدا
١۵ کیدلو به ډېر خلق خوشحال شِي ١۵ ځکه چه هغه به دَ خداوند دَ وړاندِ بزرګ
وِي او شراب او هیڅ نشه به ونه څښي او دَ خپلي مور له ګیډي نه به له
١٦ روح القدسَ ډک وِي ١٦ او له بني‌اسرائیلو به ډېر په طرف دَ خداوند الله دَ

۱۷ دوي را وګرزوي ۱۷ او دي به دَ هغه دَ مخ دَ وړاندِ دَ الياس په روح او په قوّت
سره لاړ شي چه دَ پلرونو زړونه دَ ځامنو په لوري او نافرمان دَ صادقانو وَ
۱۸ حکمت ته وګرزوي چه دَ خداوند دَپارَ مستعد قوم تيار کړي ۱۸ نو ذکرياه
فرښتي ته وويل چه دا به څرنګ معلوم کړم ځکه چه زه زوړ يم او ځما ښځه
۱۹ په ځيلو ورځو دَ ډيرِ کالو ده ۱۹ او فرښتي ځواب ورکړ و ني ويل چه زه جبرائيل يم
چه دَ الله دَ وړاندِ ودريږم او راستولي شوي يم چه خبري درسره وکړم او
۲۰ زيري درباندِ وکړم ۲۰ او ګوره چه ته به ګونګ شي او تر هغي ورځي پوري
چه دا کارونه و نه شِي خبري به نه شي کولي ځکه چه تا ځما په کلام باندِ باور
۲۱ و نه کړ چه په ځپل وقت به پوره شِي ۲۱ او خلق دَ ذکرياه منتظر وه او دَده
۲۲ درنګ کولو په هيکل کښ حيران شول ۲۲ او چه باهر راغي نو له هغوي سره
ئي خبري کولي نه شوي او دوي وپوهيدل چه ده په هيکل کښ څه رويا ليدلي ده
۲۳ او ده به هغو ته اشارت کاوه او ګونګ پاتي شه ۲۳ او داسي وشول چه دَده
دَ خدمت ورځي پوره شوي نو ځپل کورته لاړ
۲۴ ۲۴ او پس له هغو ورځو دَده ښځه اليسباته حامله شوه او ځپل
۲۵ ځان ئي تر پنځو مياشتو پوري پټ وساته او و ئي ويل ۲۵ چه خداوند په
کمو ورځو کښ چه په ما ئي نظر وکړ له ما سره ئي داسي وکړل چه
په سړو کښ له ما نه پيغور لري کړي
۲۶ ۲۶ او په شپږمي مياشتي جبرائيل فرښته دَ الله له جانبَ دَ جليل
۲۷ ښهر ته چه ناصرت نوم ئي وه ۲۷ يوي پيغلي ته چه دَ يو سړِي چنغله وه چه
يوسف نوم ئي وه او دَ داؤد له خاندانه وه واستولي شوه او دَ هغي پيغلي نوم
۲۸ مريمه وه ۲۸ او هغه ورننوته و ئي ويل اي نعمت رسيدلي السّلام خداوند له
۲۹ تا سره دي ۲۹ او هغه له دي کلامَ پريشانه شوه او په فکر کښ شوه چه دا
۳۰ څرنګ سلام دي ۳۰ او فرښتي ورِ وه چه اي مريمي مه ويريږه ځکه چه تا الله څخه فضل
۳۱ موندلي دي ۳۱ او ګوره ته به په ځپلي ګيډي بارداره شي او ځوي به راوړي او
۳۲ نوم به ئي يسوع کيږدي ۳۲ هغه به بزرګ وي او دَ الله تعالیٰ ځوي

به بللي شي او خداوند الله به دَ ده دَ پلار داوُد تخت ده ته ورکړي ۳۳ او دي به ۳۳
ترابده پوري دَ يعقوب په خاندان بادشاهت کوي او دَ ده دَ بادشاهت آخر به
نه وي ۳۴ نو مريمي فرښتي ته ووِ چه څرنګ به وشي ځکه چه زه سړي نه پيژنم ۳۵ او ۳۴ ۳۵
فرښتي خواب ورکړ و يُ ويل چه روح القدس به درباندِ نازل شي او دَ الله تعالیٰ
قدرت به په تا باندِ سوري شي له دي سببَ هغه قدوس زيږيدلي به ابن الله
بللي شي ۳۶ او ګوره ستا خپلوانه اليسباته هم په زوړوالي کښ په ځوي ۳۶
حامله ده او دا مياشت دَ هغي چه شنډه بللي شي شپږمه ده ۳۷ ځکه چه دَ ۳۷
الله په نزد هيڅ کار محال نه دي ۳۸ مريمي ووِيل ګوره دَ خداوند وينځه له ما سره ۳۸
دِ ستا دَ خبري په شان وشي نو فرښته ورنه لاړله
۳۹ او مريمه په هغو ورځو کښ پورته شوه په جلتيُ سره کوهستان ته ۳۹
ښهر دَ يهوداه له لاړه ۴۰ او دَ ذکرياه کره ور ننوته اليسباتي ته يُ سلام وکړ ۴۰
۴۱ او داسي وشول هرکله چه اليسباتي دَ مريمي سلام واوريده هلک يُ په کيډي ۴۱
کښ وټوپيده او اليسباته له روح القدسَ معموره شوه ۴۲ او په اوچت آواز ۴۲
سره يُ خبره وکړه و يُ ويل چه ته دَ ښځو په مينځ کښ مبارکه يې او ستا دَ
کيډي ميوه مبارکه ده ۴۳ او ځما دَ پارَ دا څرنګ وشوه چه ځما دَ خداوند مور ما ۴۳
له راشي ۴۴ او ګوره هر کله چه ستا دَ سلام آواز ځما غوږونو ته ورسيده هلک ۴۴
مِ په کيډي کښ له خوښيُ نه وټوپيده ۴۵ او مبارکه هغه ده چه ايمان يُ راوړ ۴۵
ځکه هغه خبري چه دَ خداوند له طرف ورته ووِيلِ شوي پوره به شي ۴۶ او ۴۶
مريمي ووِ چه

ځما ځان دَ خداوند تعظيم کوي

۴۷ او ځما روح ځما دَ نجاتِ راکونکي الله نه خوشحال شه ۴۷

۴۸ ځکه چه ده دَ خپلي وينځي په عاجزيُ نظر وکړ ۴۸

ګوره له ديَ وقتَ به ټولي پيړيُ را ته مبارکه وايي

۴۹ ځکه هغه چه قادر دي له ما سره يُ لويِ کارونه کړي دي ۴۹

او نوم دَ هغه قدوس دي

٥٠ ٥٠ او رحم ئې په هغو باندِ چه له دهٔ نه وېرېږي پېړۍ په پېړۍ دي

٥١ ٥١ او ده په خپل مازو سره زور ښکاره کړ
مغرورو لره ئې دَ خپل زړه په فکر کښ خواره کړي دي

٥٢ ٥٢ هغه جباران له تختونو را پريستلي دي
او غريبان ئې اوچت کړي دي

٥٣ ٥٣ وږي ئې په ښو څيزونو ماړه کړي دي
او دولتمندان ئې تش لاسونه ليږلي دي

٥٤ ٥٤ او دَ خپل بنده اسرائيل ئې سدد وکړ
چه رحمتونه ئې ياد کړي

٥٥ ٥٥ (لکه چه ده څمونږ پلرونو نيکونو ته وويل)
ابراهام ته او دَ هغه اولاد ته تر ابــدٔ پوري

٥٦ ٥٦ او مريمه تر دريو مياشتو پوري له هغي سره پاتي شوه بيا خپل کور
ته وګرزيده

٥٧ ٥٧ او دَ اليسباتي وقت پوره شه چه راوړي نو څوي ئې وزيږاوه

٥٨ ٥٨ او دَ دوي ګوانډيانو او خپلوانو دا واوريدل چه خداوند په دي باندِ ډير لوي

٥٩ رحم وکړ نو هغوي هم له دي سره خوشحالي وکړه ٥٩ او داسي وشول چه
دوي په اتمه ورځ دَ هلک دَ سنّتولو دَپارَ راغلل او په هغه باندِ ئې دَ خپل

٦٠ پلار نوم ذکرياه کيښود ٦٠ او دَ ده مور ځواب ورکړ وئې ويل چه نه بلکه يوحنّا

٦١ به وبللي شي ٦١ هغوي ور ته وويل چه ستاسو په ټبر کښ هيڅوک نشته چه

٦٢ په دي نوم بللي شوي دي ٦٢ نو هغوي دَ ده پلار ته اشارت وکړ چه ته څه غواړي

٦٣ چه وبللي شي ٦٣ نو هغه تختيِ را وغوښتله پرِ وئې ليکل وئې وي چه يوحنّا

٦٤ ئې نوم دي او ټولو تعجب وکړ ٦٤ او په هغه دم ئې خوله او ژبه پرانتلي شول

٦٥ ثنا دَ الله ئې وويله ٦٥ نو به ټولو ګوانډيانو ئې ويره پريوتله او په ټول کوهستان

٦٦ دَ يهوديي کښ دا خبري خوري شوي ٦٦ او هر چا چه اوريدل په خپل زړه کښ
به ئې فکر کاوه ويل به ئې چه دا به څرنګ هلک وي او دَ خداوند لاس

ور سره وه
۶۷ او دَ هغه پلار ذکریاه له روح القدس معمور شه او په نبوّت ۶۷
سره يُ ووِ ۶۸ چه ۶۸

خـــداوند الله دَ اسرائيل دِ مبارک وِي
ځکه چه ده دِ خپلو خلقو فکر وکړِ او فديه يُ وله مقرره کړِ
۶۹ او ځمونږ دپارَ يُ ښکر دَ نجاتِ پورته کړِ ۶۹
دَ خپل بنده داؤد په خاندان کښ
۷۰ [لکه چه ده دَ خپلو پاکو نبيانو په ژبي ويلي وُو ۷۰
چه له شروع نه دِي]
۷۱ نجات ځمونږ دَ دښمنانو نه ۷۱
او دَ هغو ټولو له لاسَ چه کينه راسره کوِي
۷۲ چه ځمونږ په پلارونو رحم وکړِي ۷۲
او خپل پاک عهد په ياد راوړِي
۷۳ هغه قسم چه ځمونږ له پلار ابراهام سره يُ وخوړ ۷۳
۷۴ چه مونږ له راکړِي چه مونږ دَ خپلو دښمنانو له لاسَ خلاص شوِي ۷۴
بي ويري دَ هغه عبادت کوو
۷۵ ټول عمر مونږ په پاکئِ او په صداقت سره دَ ده په حضور ۷۵
۷۶ او ته به اي هلکَ دَ الله تعالیٰ نبِي بللي شي ۷۶
ځکه چه ته به دَ خداوند دَ وړاندِ لاړِ شي
چه لاري يُ تياري کړِي
۷۷ چه دَ ده قوم ته دَ نجات پوهه ورکړِي ۷۷
دَ هغو دَ ګناهونو په بخښني کښ
۷۸ ځمونږ دَ الله دَ زړه سوِي له سببُ ۷۸
له پاسَ به سُپَيدِي دَ صباح مونږ ته ښکاره شِي
۷۹ تاچه په هغو باندِ چه په تياري ۷۹

او دَ مرګ په سورِي کښې ناست دِي وځلکيږي
او څموږ پښي دَ سلامتيا په لاري سمي کاندِ
۸۰ او هغه هلک لوئيده او په روح کښې ئې قوّت مونده او تر هغې ورځې پوري
چه په بني اسرائيلو ظاهر کيده په بيابانونو کښې اوسيده

# دويم باب

۱ آ او په هغو ورځو کښې داسي وشول چه دَ قيصر اګوسطس حکم وشه چه
۲ په ټول عالم کښې دِ اسم نويسي وشي ۲ دا ورنبئ اسم نويسي وه چه کرينيوس
۳ حاکم دَ سوريي وه ۳ او ټول لاړل دَ نوم لِيکلو دَپارَ هر يو خپل خپل ښهر
۴ ته ۴ نو يوسف هم دَ جليل له ناصرت ښهر نه په يهوديه کښې دَ داؤد ښهر
ته چه بيت لحم ورته وايه شه لاړ ځکه چه دي دَ داؤد له خاندانه او له
۵ قبيلي نهِ وه ۵ چه نوم له خپلي چنغلي مريمي سره چه په هلک سره بارداره
۶ وه ولِيکي ۶ او داسي وشول چه هغوي هلته کښې وُو دَ دي دَ لنګانه ورځي
۷ پوره شوي ۷ او خپل ورنبئ ځوي ئې راوړ او په اوړنړي کښې ئې ونغښت او
په آخور کښې ئې څملاوه ځکه چه په سراي کښې دَ دوي دَپارَ ځاي نه وه
۸ ۸ او په هغه اطرافو کښې شپانه وُو چه په ميره کښې اوسيدل او
۹ دَ خپلي رمي څوکئ به ئې په شپي کښې کوله ۹ او دَ خداوند فرښته ور ته
ودريدله او جلال دَ خداوند دَ دوي نه چاپيره وځلقيده او دوي په ډيري ويري
۱۰ وويريدل ۱۰ او فرښتي ورته ووِ چه مه ويريږئ نو ګوره چه زه تاسو ته دَ لوي
۱۱ خوشحالئ زيري راوړم چه هغه به دَ ټولو خلقو دَپارَ وِي ۱۱ چه نن دَ داؤد په
ښهر کښې ستاسو دَپارَ نجات ورکونکي پيدا شه چه مسيح خداوند دي -
۱۲ ۱۲ او ستاسو دَپارَ دا نخښه دَه چه تاسو به هلک په اوړنړي کښې نغښتلي
۱۳ په آخور کښې پروت بياموئ ۱۳ او سمدستي له فرښتي سره دَ آسماني لښکر يو
ټولي ثنا کونکي دَ الله ظاهر شه او دا ئې ويل چه
۱۴ ۱۴ الله لره په اعلیٰ عليّين کښې تمجيد
او په زمکه دِ سلامتي وِي په هغو سړيو کښې چه دي ورنه راضي دَي

۱۵ او داسي وشوه چه فرښتي له دوي نه آسمان ته لاړلي نو شپنو يو له بل سره ۱۵
وويل راشئ چه اوس بيتِ لحم ته ورشو او و وينو دا حال چه واقع شه
چه خداوند راته ظاهر کړي دي ۱۶ پس رر زر ور روان شول او مريمه او يوسف ۱۶
او هلک ئي په آخور کښ ملاست بيا موندل ۱۷ او چه هغوي وليدل هغه خبره ۱۷
چه دَ هلک په حق کښ ور ته ويلي شوي وه مشهور ئي کړه ۱۸ او هرچا چه ۱۸
دا خبري له شپنو نه واوريدلي تعجب ئي وکړ ۱۹ ليکن مريمه په خپل زړه ۱۹
کښ فکرمنده شوه او دا ټولي خبري ئي وساتلي ۲۰ او شپانه دَ الله ثنا او تمجيد ۲۰
ويونکي وګرزيدل په سبب دَ هغو ټولو حالونو چه ئي واوريدل او وئي ليدل
لکه چه دوي ته ويلي شوي وُو

۲۱ او چه اَتَه ورځي دَ سنّت کولو ئي پوره شوي نو نوم دَ هغه يسوع ۲۱
وبللي شه لکه چه له فرښتي پخوا له هغه چه په کيده کيده کيښودي شه

۲۲ او چه دَ دوي دَ پاکيدلو ورځي دَ موسىٰ دَ تورات په موافق پوره ۲۲
شوي نو اورشليم ته ئي بوت چه خداوند ته ئي حاضر کړي [۲۳ لکه چه دَ ۲۳
خداوند په تورات کښ ليکلي شوي دي چه هر نر چه رحم پرانزي خداوند
ته مقدس بللي شي] ۲۴ چه قرباني وکزاري لکه چه دَ خداوند په تورات ۲۴
کښ ويلي دي يوه جوړه دَ قمريو يا دوه بچي دَ کوترې ۲۵ او ګوره په اورشليم ۲۵
کښ سړي وه شمعون نومي او دا سړي صادق او ديندار او دَ اسرائيل دَ تسلّي
منتظر وه او روح القدس پر باندِ وه ۲۶ او هغه ته له روح القدس الهام ۲۶
وشه چه تر هغه پوري چه دَ خداوند مسيح و نه ويني مرګ به و نه ويني
۲۷ نو هغه دَ روح په هدايت سره هيکل ته راغي او چه مور او پلار يسوع ۲۷
هلک دننه راوړ چه دوي وکړي دَ دوي په باب کښ موافق دَ رسم دَ شريعت
۲۸ نو هغه په خپلي غيږي کښ ونيو او مبارکي دَ الله ئي وکړه و ئي ويل چه ۲۸
۲۹ اوس ته خپل بنده لره رخصت ورکوي اي خداونده ۲۹
موافق دَ خپل قول په سلامتيا سره ۳۰ ځکه چه ځما سترګو ستا نجات وليد ۳۰
۳۱ چه تا دَ ټولو قومونو دَ وړاندِ تيار کړي دي ۳۱

۳۲ ۳۲ نُور دي دَ غير قومونو دَ ظاهريدو دَپاره
او ستا دَ قوم اسرائيل دَپاره جلال
۳۳ ۳۳ او پلار او مور ئې په هغو خبرو چه دَ ده په حق کښ وويلي شوي تعجب ئې
۳۴ کاوه ۳۴ او شمعون دوي ته برکت ورکړ او دَ ده مور مريمې ته ئې وويل چه گوره
دا هلک دَپاره دَ پريوتلو او پورته کيدلو دَ ډيرو په اسرائيل کښ ايښي شوي دَي او
۳۵ دَپاره دَ نښې چه دَ ده په خلاف کښ به ويلي شي ۳۵ نو ستا په ځان کښ به هم
۳۶ توره تيره شي چه دَ ډيرو دَ زړونو فکرونه ښکاره شي ۳۶ او دَ اشير له فرقې نه يوه
حنّه نامه دَ فانوئيل لور نبيّه (چه تر ډيرو ورځو رسيدلي وه او دَ خپل پيغلتوب
۳۷ ئې اوه کاله دَ خپل څښتن سره تير کړي وُو ۳۷ او پوره دَ څلور اتيا کالو کنډه
وه) چه له هيکلَ نه جدا کيده په روژو او په دعاؤ سره به ئې شپه او ورځ
۳۸ عبادت کاوه ۳۸ هم په هغه ساعت راغله دَ الله شکر ئې وکړ او دَ ده په حق
کښ ئې له هغو ټولو سره چه په اورشليم کښ دَ فديې منتظر وُو خبري کولې
۳۹ ۳۹ او چه دوي موافق له شريعت دَ خداوند هر څه وکړل نو دوي په
جليل کښ ناصرت ښهر خپل ته وگرزيدل
۴۰ ۴۰ او هلک لوئيده او قوّت ناک کيده او له حکمت نه معمور
کيده او فضل دَ الله ورباندِ وه
۴۱ ۴۱ او دَ ده مور او پلار به هر کال په اختر دَ فصح کښ اورشليم ته
۴۲ تلل ۴۲ او چه دي دَ دولسو کالو شه نو دوي موافق په دستور دَ اختر پورته و
۴۳ ختل ۴۳ او چه هغه ورځې ئې تمامې کړي نو دَ راگرزيدلو په وقت کښ يسوع
۴۴ هلک په اورشليم کښ پاتې شه او مور او پلار ئې پرِ خبر نه وُو ۴۴ بلکه دوي
داگمان کاوه چه په قافله کښ دي دَ يوې ورځې په منزل لاړل او دي ئې په خپلو
۴۵ خپلوانو او آشنايانو کښ لټاوه ۴۵ او چه بيا ئې نه موند نو دَپاره دَ لټولو ئې
۴۶ اورشليم ته وگرزيدل ۴۶ او داسې وشول چه پس له دريو ورځو ئې په هيکل کښ
وموند چه دَ معلمانو په مينځ کښ ناست وه او له هغوي نه ئې اوريدل او سوالونه
۴۷ ئې ترِ کول او هغوي ټول چه له ده ئې اوريدل دَ ده پوهې او ځوابونو ته حيران

شول ۴۸ نو چه دي يُ وليد حق حيران شول مور يُ ورته ووِ اي فرزندَ ولي ۴۸
دِ داسي راسره وکړل گوره ستا پلار او زهِ غمجن شوِي ته مو لټولي ۴۹ ورته ۴۹
يُ وويل چه تاسو زه ولي لټولم تاسو نه پوهيدليِ څه ؟ چه ما لره بائده دِي
چه زه دَ خپل پلار په اسرونو کښ لګيا شم ۵۰ او دوي په دي خبري چه ورته ۵۰
يُ ووِ پوه نه شول ۵۱ او دي له هغوي سره کوز شه ناصرت ته راغي او دَ دوي ۵۱
تابعدار وه او دَ ده مور دا ټولي خبري په خپل زړه کښ ساتلي
۵۲ او مسيح په حکمت او په قامت او په فضل کښ دَ الله او دَ خلقو په نزد زياتيده ۵۲

# دريم باب

۱ په پنځلسم کال دَ بادشاهيِ دَ طبيريوس قيصر چه پنطوس پيلاطس حاکم ۱
دَ يهوديي او هيروديس حاکم دَ ځلورمي دَ جليل او فيلبوس ورور يُ دَ ځلورمي
حاکمِ دَ وطن دَ اَطوريي او دَ ترخونيس اولثانياس حاکم دَ ځلورمي دَ ابيليني وُو
۲ په سردار کوهينيُ کښ دَ حنّا او قيافا کلام دَ الله په يوحنّا ځوي دَ ذکرياه باندِ ۲
په بيابان کښ نازل شه ۳ او دي په ټولو اطرافو دَ اَردن کښ راغي دَ ګناهونو ۳
دَ معافيِ دَ توبي دَ بپتسما يُ وعظ کاوه ۴ لکه چه اشعيا پيغمبر دَ کلامونو ۴
په صحيفه کښ ليکلي شوِي دِي چه

په بيابان کښ دَ يو ناري وهونکِي آواز
چه لار دَ خداوند تياره کړيُ
او سړکونه يُ سم کړيُ
۵ هر خوړ به ډک کړي شِي ۵
او هر غر او غونډيُ به کښته کړي شِي
او کاږه به سم
او زګي لاري به هواري کړي شِي
۶ او ټول بشر به نجات دَ الله ووِيني ۶

۷ نو ده به هغو ټولو ته چه له ده نه دَ بپتسما موندلو دَپارَ ورتلِي وُو ۷
وِيل چه اي دَ مارانو بچو چا در ته وښول چه له راتلونکِي غضب نه وتښتيُ .

٨ ٨ نو اوس داسي ميوه چه لايقه دَ توبي وِي راوړئِ او په خپلو ځانونو سره
په وياو شروع مه کوئِ چه ابراهام ځمونږَ پلار دي ځکه زه تاسو ته وايم چه
٩ الله قادر دي چه له دي کاڼو نه ابراهام لره زامن پورته کړي ٩ او اوس هم په
بيخ دَ ونو تبر ايښي شوي دي نو هره ونه چه ښه ميوه نه راوړِي پريکړي او
١٠ په اور کښ به واچولي شي ١٠ او تولو ترِ پوښتنه وکړه و ئي وِيل چه باري
١١ سونږ څه وکړو ١١ ده هغو ته ځواب ورکړ او وِئي وِيل چه هغه څوک چه دوه
قميصونه لري هغه ته چه نه ئي لري ور دِ کړي او هغه څوک چه خوراک لري
١٢ هم داسي دِ وکړي ١٢ نو ټلنک اخستونکي هم دَ بپتسما دَپارَ راغله ده ته ئي وويل
١٣ چه اي استاذه نو مونږ څه کړو ١٣ ده ورته وويل چه تاسو زيات له هغه
١٤ نه چه ستاسو دَپارَ مقرر دِي مه اخلئِ ١٤ سپاهيانو هم ترِ پوښتنه وکړه
چه باري مونږ څه وکړو ده ورته وويل چه په چا باندِ ظلم مه کوئِ او په چا
باندِ چغلي مه خورئِ او په خپل مواجب صبر کوئِ
١٥ ١٥ او چه خلقو انتظار کاوه او ټولو په خپلو زړونو کښ دَ يوحنّا په
١٦ حق کښ فکر کاوه چه کندِ دا مسيح دي ١٦ نو يوحنّا ټولو ته په ځواب کښ و
وِيل چه زه خو تاسو ته په اوبو سره بپتسما درکوم مگر يو له ما نه ډير
زورآور راځي چه زه لايق نه يم چه دَ هغه دَ څپلو تسمه پرانزم هغه به تاسو
١٧ له په روح القدس او په اور سره بپتسما درکړي ١٧ دَ هغه چج دَ هغه په لاس
کښ دي او خپل درمند به په ښه شان سره صاف کړي او غنم به په خپل
انبار کښ جمع کړي او درُوزه به په هغه اور کښ چه هرګز نه مري وسيزي
١٨ ١٩ ١٨ او په نورو ډيرو نصيحتونو سره ئي خلقو ته زيري ورکاوه ١٩ مگر
هيروديس دَ څلورمي حاکم دَ خپل ورور دَ ښځي هيروديي په سبب او په سبب
٢٠ دَ نورو بدو چه هيروديس وکړل له ده نه و رټلي شه ٢٠ او زيات له دغو
ئي دا هم وکړل چه يوحنّا ئي په قيد کښ بند کړ
٢١ ٢١ او داسي وشول چه ټولو خلقو بپتسما بياموندہ او يسوع هم
٢٢ بپتسما بياموندہ او چه دُعا ئي کوله آسمان پرانتي شه ٢٢ او روح القدس په

جسماني صورت سره دَ کوتري په شان پرې نازل شه او له آسمانَ يو آواز وشه
چه ته څما محبوب څوي يې زه له تا نه ډير خوشحاليږم
۲۳ ۲۳ او چه يسوع پخپله شروع وکړه نو قريب دَ ديرشو کالو وه او خلقو
۲۴ دَ يوسف څوي گاڼه چه څوي دَ عيلي ۲۴ څوي دَ متات څوي دَ لاوِي څوي دَ ملکي
۲۵ څوي دَ ينّي څوي دَ يوسف ۲۵ څوي دَ متتياه څوي دَ اَموص څوي دَ نحوم
۲۶ څوي دَ اسلي څوي دَ نگي ۲۶ څوي دَ ماعت څوي دَ متتياه څوي دَ سمعِي
۲۷ څوي دَ يوسيخ څوي دَ يوداه ۲۷ څوي دَ يوحنّا څوي دَ ريسا څوي دَ زروبابل څوي
۲۸ دَ شالتئيل څوي دَ نيرِي ۲۸ څوي دَ ملکِي څوي دَ ادّي څوي دَ قوسام څوي
۲۹ دَ ايلمودام څوي دَ عير ۲۹ څوي دَ يسو څوي دَ اليعاذر څوي دَ يوريم څوي
۳۰ دَ متات څوي دَ لاوِي ۳۰ څوي دَ شمعون څوي دَ يهودا څوي دَ يوسف څوي
۳۱ دَ يونام څوي دَ الياقيم ۳۱ څوي دَ مليا څوي دَ منّا څوي دَ متتاه څوي دَ
۳۲ ناتن څوي دَ داؤد ۳۲ څوي دَ يسِي څوي دَ عبيد څوي دَ بوعز څوي دَ
۳۳ سلمون څوي دَ نحشون ۳۳ څوي دَ عميناداب څوي دَ ارنِي څوي دَ حصرون
۳۴ څوي دَ فارص څوي دَ يهودا ۳۴ څوي دَ يعقوب څوي دَ اسحاق څوي دَ
۳۵ ابراهام څوي دَ تارخ څوي دَ ناحور ۳۵ څوي دَ سروخ څوي دَ رکو څوي
۳۶ دَ فلگ څوي دَ عبر څوي دَ سلح ۳۶ څوي دَ قينان څوي دَ ارفکساد څوي دَ
۳۷ سِيم څوي دَ نوح څوي دَ لامک ۳۷ څوي دَ متوسلح څوي دَ حنوخ څوي دَ
۳۸ يارد څوي دَ مللئيل څوي دَ قينان ۳۸ څوي دَ انوس څوي دَ شِيث څوي
دَ آدم څوي دَ الله

## څلورم باب

۱ ۱ او يسوع له روح القدسَ ډک له اَردنَ وگرزيده او دَ روح په هدايت
۲ سره بيابان ته بوتلي شه ۲ او تر څلويښتو ورځو پورې له ابليس نه
ازميلي کيده او په هغو ورځو کښ ئې هيڅ نه خواړه او چه هغه ورځې تمامي
۳ شوې نو ورې شه ۳ او ابليس ورته ووېل چه که ته دَ الله څوي يې نو
۴ دې کاڼې ته ووايه چه ډوډي شي ۴ او يسوع ځواب ورکړ او ئې ووېل چه

۵ لیکلي شوي دي چه سړی تش په ډوډئ سره ژوندي نه اوسي ۵ بیا دي
۶ ئې وخېژاوه ټول ملکونه دَ دنیا ئې په یو دم ورښکاره کړل ۶ او ابلیس
ده ته وویل چه زه به دا ټول اختیار او دبدبه تا ته درکړم ځکه چه دا ما
۷ ته سپارلي شوي دي او هر چا ته چه مې رضا وي ورکوم ئې ۷ او که ته
۸ خما دَ وړاندې سجده وکړې نو دا ټول به ستا شي ۸ یسوع په ځواب کښ
ورته وو چه لیکلي شوي دي چه ته خداوند الله خپل ته سجده
۹ کوه او خاص دَده عبادت کوه ۹ نو دي ئې اورشلیم ته بوت او دَ هیکل
په کنګره ئې ودراوه ورته وئې ویل چه که چرې ته ځوي دَ الله یې نو
۱۰ خپل ځان له دې ځایه کوز وغورزوه ۱۰ ځکه چه لیکلي شوي دي چه

هغه به ستا دَپارَ خپلو فرښتو ته حکم ورکړي چه تا وساتي

۱۱ ۱۱ او چه

په خپلو لاسو کښ دې ونیسي
هسي نه وي چه خپلې پښې په کاڼي ووهي

۱۲ ۱۲ یسوع په ځواب کښ ورته وو چه ویلي شوي دي
چه ته خداوند الله خپل مه آزمایه

۱۳ ۱۳ او چه ابلیس ټول ازمائښت تمام کړ نو تر څه مُدې پورې ورنه جدا شه
۱۴ ۱۴ او یسوع دَ روح په قدرت سره جلیل ته وګرزیده او شهرت دَده په ټول چاپېره ملک کښ
۱۵ خور شه ۱۵ او دَ هغو په عبادتخانو کښ ئې تعلیم کاوه او له ټولو نه وستایلي شه
۱۶ ۱۶ او دي ناصرت ته چه هلته کښ ئې پالنه سوندلې وه ورغې او دَ
سبت په ورځ موافق په خپل دستور سره عبادتخانې ته ننوت او دَ لوستو
۱۷ دَپارَ پورته شه ۱۷ او دَ اشعیا پېغمبر صحیفه ورکړې شوه او صحیفه ئې
۱۸ پرانستله هغه ځاي ئې وموند چه په کښ لیکلي وُو ۱۸ چه

دَ خداوند روح په ما باندې دي
زه ئې مسح کړم چه خوارانو ته دَ انجیل زېرې ورکړم
زه ئې راستولي یم چه بندیانو ته دَ خلاصون

او ړندو ته د بینائی خبر ورکړم
او ژوبلو لره په آزادي کښې واستوم
۱۹ او د خداوند د غوره کال وعظ وکړم ۱۹
۲۰ او صحیفه ئې تمپه کړه او خادم ته ئې بیرته ورکړه او کښېناست او د ټولو ۲۰
سترګې چه په عبادت‌خانې کښې وُو په ده بانْدې لګیدلې وې ۲۱ نو دې هغوي ته ۲۱
په خبرو سر شه چه نن ورځ دا صحیفه ستاسو په غوږونو کښې پوره
شه ۲۲ او هغوي ټولو په ده بانْدې شاهدي، ورکړه او د فضل په خبرو چه د ده له ۲۲
خولې نه را ووتې تعجب ئې کاوه او ویل ئې چه کنْږي دا هغه د یوسف ځوي نه دي
څه؟ ۲۳ ورته ئې ووې چه خامخا به تاسو دا متل په ما پورې ووائې چه اې طبیبه ۲۳
خپل ځان له شفا ورکړه هغه څه چه مونږ واوریدل چه په کفرنحوم کښې وشول
دلې په خپل وطن کښې ئې هم وکړه ۲۴ او ده ووې چه زه تاسو ته رښتیا وایم چه هیڅ ۲۴
پیغمبر په خپل وطن کښې قبول نه دې ۲۵ مګر زه تاسو ته په رښتیا سره وایم ۲۵
چه ډیرې کنډې په اسرائیل کښې وې د الیاس په ورځو کښې هغه وقت چه آسمان
درې کاله او شپږ میاشتې بندکړې شه ځو چه په ټوله زمکه کښې لوې قحط خور شه
۲۶ او الیا په هغوي کښې هیچا ته وانه ستاوه شه مګر د صیدا په صرپتا کښې ۲۶
یوې کنډې ښځې ته ۲۷ او د الیشه پیغمبر په وقت کښې په اسرائیل کښې ډیر ۲۷
کوړیان وُو مګر له هغوي نه هیڅ یو پاک نه کړې شه بې له نعمان سریانی نه
۲۸ او ټول چه په عبادت‌خانه کښې وُو چه دا خبرې ئې واوریدلې له غصې نه ۲۸
ډک شول ۲۹ نو پاڅیدل او ښهر له ښهره ئې وویسته او د هغه غره تر ۲۹
ځوکې پورې چه د هغوي ښهر پرې جوړ شوي وه رائې‌وست دې د پاره چه ښکته ئې
وغورزوي ۳۰ مګر دې د هغوي له مینځ ووت او لاړ شه ۳۰
۳۱ او د جلیل ښهر کفرنحوم ته ورکوز شه او د سبتونو کښې ئې هغوي ته ۳۱
تعلیم ورکاوه ۳۲ او هغوي د ده تعلیم ته حیران شول ځکه چه د ده کلام له ۳۲
قدرت سره وه ۳۳ او په عبادت‌خانې کښې یو سړې وه چه د دیــو روح ئې ۳۳
لاره او په اوچت آواز سره ئې ناره وکړه ۳۴ اې یسوع ناصرې ځمونږ له تا ۳۴

سره څه کار دي ته څموښ دَ هلاکولو دَپارَ راغلي يُ څه ؟ زه تا پيژنم چه څوک
٣٥ يُ دَ الله قدوس ٣٥ او يسوع هغه وراټه وئي ويل خُله ونسه او له ده نه ووزه
او دغه ديو هغه په مينځ کښ وغورزاوه او تِر ووت او هيڅ آزار يُ ورته و
٣٦ نه رساوه ٣٦ او په ټولو هيبت پريوت او يو له بل سره يُ خبري کولي ويل يُ
چه دا څرنګ کلام دي چه په اختيار او په قدرت سره په پليتو روحونو حکم
٣٧ کويُ نو وزي ٣٧ او شهرت يُ چاپيره په هر ځاي کښ خور شه
٣٨ ٣٨ او دي له عبادت‌خاني نه پاڅيد او دَ شمعون کره ننوت او دَ شمعون دَ ښځي
٣٩ مور سختي تبي نيولي وه هغوي ده ته دَ هغي دَپارَ زارِي وکره ٣٩ نو دي دَ هغي
سرته ودريده تبه يُ ورټله او هغه يُ پريښودله او هغه دستي پورته شوه او
دَ دوي په خدمت مشغوله شوه
٤٠ ٤٠ او چه نمر پريوت هغوي ټول چه ورځنه په رنګ رنګ رنځونو رنځوران وُو ده ته
٤١ يُ راوړل او ده خپل لاسونه په هر يو له هغو کيښول او شفا يُ ورکړله ٤١ او له
ډيرو نه ديوان هم ووتل ناري وهونکي ويل يُ چه ته دَ الله ځوي يي او دوي
يُ ورټل او ويلو ته يُ نه پريښول چه هغوي دي پيژانده چه مسيح دي
٤٢ ٤٢ او چه ورځ شوه دي ووت ويراني ته ورغي او ټوليو لټاوه او ورغلل
٤٣ او منع کاوه يُ چه له هغوي نه لاړ نه شِي ٤٣ مګر ده ورته ووِ چه ما لره
ضرور دِي چه نورو ښهرونو ته هم زيري دَ بادشاهت دَ الله ورکرم ځکه چه
٤٤ زه دَپارَ دَ دي راستولي شوي يم ٤٤ او ده دَ جليل په عبادت‌خانو کښ وعظ کاوه

# پنځم باب

١ ١ او داسي وشول چه ټولي دَ الله دَ کلام دَ اوريدلو دَپارَ ور باندِ ګڼړ شول او
٢ دي دَ ګنيسرت دَ درياب په غاړه ولاړ وه ٢ نو ده دوه بيړيُ دَ درياب په غاړي
ولاړي وليدلي او ماهي‌ګيران ور نه کوز شوِي وُو او خپل جالونه يُ وينځل
٣ ٣ او دي له هغو بيړو نه په يوي چه دَ شمعون وه وختوت هغه ته يُ سوال
وکړ چه له وچي نه ئي لږ څه تيل وهه او کښيناست ټوليو ته يُ له بيړي نه تعليم
٤ کاوه ٤ او چه له کلام ويلو نه فارغ شه نو شمعون ته يُ وويل چه ژوري ته

٥ ئې بوزه او دَ ښکار دَپارَ خپل جالونه واچوئ‌ه ٥ او شمعون په ځواب کښ ور ته ووِ
اي استاذَ مونږَ ټوله شپه خوارِي وکړه هيڅ مو و نه نيول مگر ستا په ويلو
٦ سره به جالونه واچوم ٦ او چه هغوي دا وکړل نو يو لوي ټولي دَ کبانو ئې گير کړ
٧ او جال ئې په شليدلو شه ٧ او هغو ملگرو ته چه په بلي بيړئ کښ وُو اشارت
وکړ چه راشِي او دَ هغوي مدد وکړِي نو هغوي راغله او دواړه بيړي ئې په هسي
٨ شان ور نه ډکي کړي چه په غرقيدلو شوي ٨ ليکن شمعون پطرس چه دا وليدل
نو دَ يسوع په زنگنونو پريوت و ئې ويل چه اي خداونده له ما نه لاړ شه
٩ چه زه گنهگار سړي يم ٩ ځکه چه دَ هغو کبانو دَ ښکار کولو په سبب
١٠ چه کړي ئې وه په ده او په هغو ټولو چه ور سره وُو هيبت پريوت ١٠ او په دي
شان سره هم دَ زبدِي ځامن يعقوب او يوحنّا چه دَ شمعون شريکان وُو او
١١ يسوع شمعون ته وويل مه ويريږه پس له دي به سړِي ژوندِي نسي ١١ او
هغوي چه بيړئ وچي ته راکښلي نو هر څه ئې ترک کړل په ده پسي روان شول
١٢ ١٢ او داسي وشول چه دي په يوه له ښهرونو کښ وه گوره يو
سړي له کوړه ډک هلته کښ وه او چه يسوع ئې وليد پر مخې پريوت زارِي
١٣ ئې ور ته وکړه او و ئې ويل اي خداونده که ته غواړي نو پاکولي مِ شي ١٣ او ده
خپل لاس ور وغزاوه هغه ئې مسه کړ او و ئې ويل زه غواړم پاک شه په
١٤ هغه دم کوړ ور نه لاړ شه ١٤ او ده په هغه تاکيد وکړ چه هيڅ‌ا ته مه
وايه بلکه لاړ شه خپل ځان کوهين ته وښيه او دَ خپل ځان دَ پاکيدلو
نذر اداکړه لکه چه موسیٰ مقرر کړي دي دَپارَ چه په هغوي شاهدِي
١٥ شِي ١٥ مگر آواز دَ ده زيات خور شه او ډير ټولي جمع شول چه دَ ده واورِي
١٦ او له خپلو رنځونو نه شفا بيامومِي ١٦ مگر هغه په ويرانو کښ يواځي لاړ
او دعا ئې کوله

١٧ ١٧ او په يوي له هغو ورځو نه داسي وشول چه ده تعليم ورکاوه او
فريسيان او معلّمان دَ شرع ناست وُو چه له جليلَ او دَ يهوديي له هره
کلِي او له اورشليم نه راغلِي وُو او دَ خداوند قدرت دَ شفا ورکولو دَپارَ

۱۸ ورسره وه ۱۸ او ګوره څو تنو يو سړي چه شل وه په کټ راوړ او غوښتل
۱۹ ئې چه دننه ئې وروړي او دَ ده دَ وړاندِ ئې کيږدي ۱۹ او چه دَ ګوليو له سببَ
ئې وار دَ نِيه پيستلو نه سوند په کوته ؤ ختل دَ چت دَ کودريو له ميانه له کټ
۲۰ سره ئې په مينځ کښ دَ يسوع دَ وړاندِ ئې کوز کړ ۲۰ او چه ده دَ هغو ايمان
۲۱ وليد ورته وئې ويل چه اَيْ سړيه ستا ګناهونه درته وبخښلي شول ۲۱ او
کاتبان او فريسيان په ځجتونو کولو سر شول وئې ويل چه دا څوک دي چه
۲۲ کفر وائي څوک بي له يوه الله نه ګناه معافولي شي ۲۲ نو يسوع دَ دوي په ځجتونو
وپوهيده په څواب کښ ئې ورته ووِ چه تاسو په خپلو زړونو کښ څه
۲۳ ځجت کوئِ ۲۳ کومه زياته آسانه ده دا ويل چه ستا ګناهونه معاف شول
۲۴ يا دا ويل چه پورته شه وګرزه ۲۴ نو تا چه تاسو وپوهيږِ چه دَ انسان
څوي په زمکه باندِ دَ ګناهونو معافولو اختيار لري هغه شل ته ئې وويل زه
۲۵ تا ته وايم ودريږه او خپل کټ پورته کړه خپل کور ته ورځه ۲۵ او هغه سمدستي
دَ دوي دَ وړاندِ ودريده هغه چه ور باندِ پروت وه پورته کړ دَ اَلله تمجيد ويونکي خپل
۲۶ کور ته لاړ شه ۲۶ او ټول حيرانئِ ونيول او دَ الله تمجيد ئې ووايه او له ويري
نه ډک شول او وئې ويل چه نن ورځ مو عجيبه خبره وليده
۲۷ ۲۷ او پس له دغه بهر لاړ شه او يو قلنګ اخستونکي لاوِي نوم ئې
۲۸ دَ محصول په چوتري باندِ ناست وليد ورته ئې ووِ چه په ما پسي راځه ۲۸ او
۲۹ هغه هرڅه ترک کړل پورته شه او په ده پسي شه ۲۹ او لاوِي پخپل کور کښ
دَ له لويه ميلمستيا وکړه او هلته کښ دَ قلنګ دَ اخستونکو او دَ نورو چه
۳۰ له ده سره ناست وُو لوي ټولي وه ۳۰ نو فريسيانو او کاتبانو دَ ده له شاګردانو
سره ئې تکرار وکړ وئې ويل چه تاسو ولي له قلنګ اخستونکو او ګناهګارانو سره
۳۱ خوريِ او څښئِ ۳۱ نو يسوع په څواب کښ ورته ووِ چه روغ دَ طبيب حاجت
۳۲ نه لري مګر رنځوران ۳۲ زه راغلي نه يم چه صادقان بلکه چه ګنهګاران توبي
۳۳ ته را وبولم ۳۳ او هغوي ده ته ووِ چه دَ يوحنّا شاګردان ډيري ډيري
روژي نِسي او دعا کوي او په دي شان دَ فريسيانو شاګردان هم مګر ستا

شاګردان خوري او څښي ٣٤ نو یسوع ورته ووېل چه دَ واده دَکور په ٣٤
هلکانو تر هغه پوري چه زوم ورسره وي روژه لرلی شي څه؟ ٣٥ لیکن ٣٥
ورځي به راشي چه زوم به له دوي ونیولي شي نو په هغو ورځو کښ به روژه
ونيسي ٣٦ او ده هغوي ته يو مثل هم ووايه چه هیڅوک ټکړه له نوي جامي نه ٣٦
نه شلوي چه په زړي جامي ئې کېږدي او که نه نو نوي لره به وشلوي او هغه ټکړه له
نوي نه له زړي سره موافقت نه کوي ٣٧ او هیڅوک نوي شراب په زړو مشکونو ٣٧
کښ نه اچوي او که نه نو نوي شراب به مشکونه وشلوي او دوي به ور نه
توي شي او مشکونه به خراب شي ٣٨ بلکه نوي شراب به نويو مشکونو کښ ٣٨
اچول بایده دي ٣٩ او هم هیڅوک نشته چه زاړه وڅښي نو دستي نوي ٣٩
وغواړي ځکه چه وايي چه زاړه غوره دي ❖

## شپږم باب

١ او دَ سبّت په ورځ داسي وشول چه دي دَ فصل په مینځ کښ تېریده او ١
شاګردانو ئې وږي شوکول په لاسونو کښ ئې مښل او خوړل ئې ٢ نو څنو فریسیانو ٢
ووېل چه ولي تاسو هغه کوئ چه دَ سبّت په ورځي ئې کول روا نه دي ٣ یسوع ٣
په ځواب کښ ورته ووې چه تاسو لوستلي نه دي هغه چه داؤد وکړه چه دي
او هغه چه ورسره وُو وږي وُو ٤ نو څرنګ دَ الله په کور کښ ننوت او ډوډۍ ٤
ئې دَ نذر واخستي وئې خوړي او هم ئې هغوي ته چه ورسره وُو ورکړي
چه دَ هغوي خوراک بي له کوهینانو نه هیچا ته روا نه دي ٥ او ورته ئې ٥
ووې چه ابنِ آدم مالک دَ سبّت هم دي

٦ او په بل سبّت کښ هم داسي وشول چه دي عبادتخاني ته ٦
ننه ووت او تعلیم ئې ورکاوه او هلته کښ یو سړي وه چه ښي لاس
ئې وچ وه ٧ او کاتبان او فریسیان دِ ته په ځو کښ شول چه که دَ سبّت ٧
په ورځ شفا ورکړي نو دَ نالش ځاي به پیدا وموي ٨ لیکن دي دَ هغو په ٨
ځیالونو پوه شه هغه سړي ته چه لاس ئې وچ وه وئې ویل پورته شه
او په مینځ کښ ودرېږه او هغه اوچت پاسید او ودریده ٩ نو یسوع هغوئ

نه وو چه زه له تاسو نه یوه پوښتنه کوم دَ سبّت په ورځ نیک کار کول
۱۰ که بد کار کول روا دي ځان خلاصول یا هلاکول ۱۰ او ټولو ته ئي چاپېره نظر
وکړ هغه سړي ته ئي وویل چه خپل لاس وغزوه هغه هم داسي وکړل او
۱۱ لاس ئي جوړ شه ۱۱ نو هغوي له لیونتوب نه ډک شول او یو له بل سره
ئي وو چه موږ له یسوع سره څه وکړو
۱۲ ۱۲ او په هغو ورځو کښ داسي وشول چه دَ دعا کولو دَپارَ غره ته
۱۳ بهر ووت او ټوله شپه ئي الله ته په دعا کولو تیره کړه ۱۳ او چه ورځ
شوه نو خپل شاګردان ئي را وبلل او له هغوي نه ئي دولس تنه غوره
۱۴ کړل او په رسولانو ئي نامزد کړل ۱۴ شمعون چه پطرس ئي هم باله
او دَ هغه ورور اندریاس او یعقوب او یوحنّا او فیلپُس او برتُلما
۱۵ ۱۵ او متي او توما او یعقوب دَ الفي او شمعون چه غیرت ناک ور ته وایه
۱۶ شه ۱۶ او یهودا دَ یعقوب او یهودا اسقریوطي چه دَده سپارونکي شه
۱۷ ۱۷ او دي له هغوي سره راکوز شه په میدان کښ ودریده او دَده دَ
شاګردانو لوي ټولي وه او دَ خلقو ټولي چه له ټولي یهودیي او له اورشلیمَ
او دَ صور او دَ صیدا دَ دریاب له غاړي دَده دَ اوریدلو او دَ خپلو
۱۸ رنځونو دَ شفا موندلو دَپارَ راغلي وُو ۱۸ او هغه چه له ناپاکو روحونو ئي
۱۹ ضرر موندلي وُو شفا ئي بیاموندله ۱۹ او ټولو خلقو وغوښتل چه دي مسه کړي
ځکه چه قدرت ور نه راوت او ټولو ته ئي شفا ورکوله
۲۰ ۲۰ او ده خپلو شاګردانو ته سترګي پورته کړي او وئي ویل مبارک تاسي
۲۱ یئ اي خوارانو ځکه چه بادشاهي دَ الله ستاسو دي ۲۱ مبارک تاسو یئ
اي چه اوس وږي یئ ځکه چه ماړه به کړي شئ مبارک تاسو یئ اي چه ژاړئ
۲۲ ځکه چه و به خاندئ ۲۲ مبارک تاسو یئ هر کله چه خلق به له تاسو سره کینه وکړي
او به مو شړي او بښکنځل به درته وکړي او ستاسو نوم دَ بدنامئ په شان به وباسي دَ انسان دَ ځوي
۲۳ له سببَ ۲۳ په هغي ورځي خوشحال شئ او له خوښئ نه ټوپونه کوئ ځکه
کوزئ چه ستاسو اجر په آسمان کښ لوي دي ځکه چه دَ دوي پلرونو له

نبیانو سره هم داسي وکړل ۲۴ مګر هئ په تاسو باندِ چه دولتمند ۲۴
يئِ ځکه چه تاسو خپله تسلّي سوندلِي ده ۲۵ هئِ په تاسو باندِ چه ۲۵
اوس ماړه يئِ ځکه چه وږي به شئِ هئِ په تاسو باندِ چه اوس خاندئِ ځکه
چه ویر او ژړا به وکړئِ ۲۶ هئِ په تاسو هر کله چه ټول سړي ۲۶
ستاسي ستاینه کوِي ځکه چه دَ هغو پلرونو له دروغژنو نبیانو سره
هم داسي وکړل
۲۷ لیکن زه تاسو ته چه آورئِ وایم چه خپلو دښمنانو سره ۲۷
مینه کوئِ او چه له تاسو سره کینه لرِي نو نیکي ورسره کوئِ ۲۸ او چه ۲۸
په تاسو لعنت کوِي دَ هغو دَپارَ برکت غواړئِ او چه تاسو ربړوِي دَ
هغو دَپارَ دعا غواړئِ ۲۹ هغه ته چه په یوه انګِي دِ ووهِي بل هم وروګرزوه ۲۹
او له هغه نه چه څادر درنه اخلِي قبا هم مه منع کوه ۳۰ او هر څوک ۳۰
چه له تا نه سوال وکړِي ور ئي کړه او هغه څوک چه ستا مال وښِي
بیرته ئي ور نه مه غواړه ۳۱ او لکه چه تاسو غواړئِ چه سړي در سره ۳۱
وکړِي تاسو هم له هغو سره داسي وکړئِ ۳۲ او که تاسو له خپلو ۳۲
محبّانو سره محبّت کوئِ نو ستاسو څه فضل دي ځکه چه داسي خو
ګنهګاران هم له خپلو مینه کونکو سره مینه کوِي ۳۳ او که تاسو له هغو ۳۳
سره ښیګړه وکړئِ چه له تاسو سره ښیګړه کوِي نو ستاسو څه فضل
دي ځکه چه ګنهګاران هم داسي کوِي ۳۴ او که تاسو هغه چا ته قرض ۳۴
ورکوئِ چه امید دَ بیرته اخستلو ور نه لرئِ نو ستاسو څه فضل دي
ځکه چه ګنهګاران هم ګنهګارانو له پور ورکوِي تا چه بدل ور نه ومومِي
۳۵ مګر تاسو له خپلو دښمنانو سره مینه کوئِ او نیکي ورسره کوئِ ۳۵
او بي امیده دَ بیرته اخستلو پور ورکوئِ نو به اجر ستاسو لوئِ وِي
او دَ الله تعالیٰ څامن به شئِ ځکه چه دي په ناشکرو او په شریرانو
مهربان دي ۳۶ پس رحیم شئِ لکه چه ستاسو پلار رحیم دي ۳۷ او ۳۶ ۳۷
حکم مه کوئِ نو په تاسو به حکم و نه کړي شي پړه مه کوئِ نو به تاسو

۳۸ پرہ کړي نه شئ خلاصوئ نو به خلاص کړي شئ ۳۸ ورکوئ نو تاسو ته به
درکړي شي ښه پيمانه منډلي او خوځولي او ستر ريزيدنکي به
دوي ستا په غيږ کښ درکړي ځکه چه په کومه پيمانه چه ئې تاسو پيمانه
کوئ هم په هغه به ستاسو دپاره پيمانه کړي شي
۳۹ ۳۹ او ده هغوي ته يو متل ووايه چه ړوند ړانده ته لار ښيلي
۴۰ شي څه؟ کنړه دواړه به په ډوغل کښ پري نوزي څه؟ ۴۰ شاګرد له خپله
استاذ لوي نه دي بلکه هر يو چه کامل شي د خپل استاذ په شان به
۴۱ وي ۴۱ ولي په هغه خسړي نظر کوي چه ستا د ورور په سترګه کښ دي
۴۲ ليکن په هغه شهتير چه ستا په سترګه کښ دي فکر نه کوي ۴۲ يا خپل
ورور ته څرنګ ويلي شي چه اي وروره پرېږده چه دا خسړي چه ستا
په سترګه کښ دي را وباسم او د خپلي سترګي هغي شهتير ته نه ګوري
اي رياکاره اول له خپلي سترګي نه شهتير وباسه پس له هغه د هغه
۴۳ خسړي په ايستلو چه ستا د ورور په سترګه کښ دي ښه نظر وکړي ۴۳ ځکه
چه هيڅ ښه ونه نشته چه بده ميوه راوړي او نه بده ونه چه ښه ميوه
۴۴ راوړي ۴۴ د دي دپاره هره ونه په خپلي ميوي سره پيژندي شي ځکه چه
۴۵ له اغزو نه انځير نه شوکوي او نه له کرکڼي نه انګور ازوي ۴۵ نيک سړي
د خپل زړه له ښي خزاني نه ښه څيزونه راوباسي او بد سړي د خپل
زړه له بدي خزاني نه بد څيزونه راوړي ځکه چه د خپل زړه له زياتوالي خوله
۴۶ ئې خبري کوي ۴۶ او ځله ما ته خداوند وايئ او چه زه ئې وايم
۴۷ په هغه عمل نه کوئ ۴۷ هغه څوک چه ما له راځي او ځما خبري اوري
۴۸ او عمل پري وکړي زه ئې تاسو ته درښيم چه هغه د څه په شان دي ۴۸ هغه
د يوه سړي په شان دي چه کور جوړوي او ژور ئې وکنود او بنياد ئې
په پرښه کيښود هر کله چه سيلاب راغي نو سيند په هغه کور باندي
۴۹ په زور ولګيده ليکن و نه خوځولي شه ځکه چه ښه بنا شوي وه ۴۹ نو
هغه څوک چه اوري او عمل پري و نه کړي د يوه سړي په شان دي چه

په زمکه ئې بې بنياده کور جوړ کړ او سيند په زور سره پرِ ولګيده او
هغه دسِتي پريوت او دَ هغه کور وراني لويه وشوه ✣

## اوم باب

١ او چه ټولي خبري خپلي ئې خلقو ته تمامي کړِي وي نو کفرنحوم ته ١
ننه وت ٢ او دَ يوه صوبدار مريي چه ډير ورباندِ ګران وه رنځور شه ٢
په ځانکندن وه ٣ چه هغه دَ يسوع په حق کښ واوريده نو دَ ٣
يهوديانو سپين‌ږيري ئې ورواستول سوال ئې ترِ وکړ چه دي راشي
او مريي ته ئې شفا ورکړِي ٤ نو هغوي چه يسوع ته حاضر شول ورِ ته ٤
ئې ډير سوالونه وکړل او وئې ويل چه هغه دَدي لايق دي چه ته دا ور
سره وکړي ٥ ځکه چه دي ځمونږ له قوم سره مينه لري او ځمونږ دَپارَ ئې ٥
پخپله عبادتخانه جوړه کړي ده ٦ نو يسوع له هغو سره لاړ شه مګر ٦
چه دي له کور نه ئې لري نه وه چه صوبدار دوستان ورواستول او ور
ته وئې ويل اي خداونده ربړ مه کوه ځکه چه زه لايق دَ دي
نه يم چه ته ځما تر چت لاندِ راشي ٧ دي دَپارَ چه ما خپل ځان ٧
هم دَدي لايق ونه ګاڼه چه درشم ليکن تش کلام ووايه نو ځما هلک
به جوړ شِي ٨ ځکه چه زه هم يو سړي يم چه دَ بل په اختيار کښ ٨
يم او سپاهيان ځما تر لاسو لاندِ دي او چه يو ته ووايم چه ځه نو
هغه ځِي او بل ته چه راځه نو راځِي او خپل نوکر ته چه دا کوه نو هغه
کوِي ٩ يسوع چه دا واوريدل تعجب ئې وکړ او هغو خلقو ته چه په ده پسي ٩
راتلل را وګرزيده ورته وئې ويل زه تاسو ته وايم چه ما دا هومره ايمان
په اسرائيل کښ هم بيا نه موند ١٠ او هغوي چه استولي شوِي ؤُو کور ته ١٠
را وګرزيدل نو هغه مريي ئې جوړ بيا موند

١١ او له څه پس داسي وشول چه دي يوه ښهر ته چه نَين ١١
بللي شه لاړ او شاګردان ئې او ډير خلق ورسره لاړل ١٢ او چه ١٢
دَ ښهر دروازي ته ور نژدي شه نو ګوره چه يو مړي ئې بهر راوړ

چه دَنجَلِي مور يواځي ځوي وه او هغه كونډه وه او ډير خلق دَ ښهر ورسره
۱۳ وه ۱۳ چه خداوند هغه وليده زړه ئي پرِ وسه او هغې ته ئي ووِ مه
۱۴ ژاړه ۱۴ او ورنږدې شه تابوت ئي مسه كړ او وړونكي ودريدل او ده وويل
۱۵ اي ځوانه زه درته وايم پورته شه ۱۵ او مړي سم كښيناست په خبرو
۱۶ لګيا شه او مور ته ئي وسپاره ۱۶ نو ټول ويري ونيول او تمجيد دَ
الله ئي كاوه او ويل ئي چه ځمونږ په مينځ كښ يو لوي پيغمبر پيدا شه او الله
۱۷ په خپلو خلقو نظر وكړ ۱۷ او دا خبره دَده په ټوله يهوديه او په ټولو
اطرافو كښ خوره شوه
۱۸ ۱۹ ۱۸ او دَ يوحنّا شاګردانو هغه له دي ټولو خبرو خبر كړ ۱۹ نو يوحنّا
دوه تنه له خپلو شاګردانو نه راوبلل خداوند ته ئي واستول و ئي ويل چه
۲۰ ته هغه راتلونكي ئي يا مونږ دَبل چا انتظار كوو ۲۰ نو هغه سړي ورغلل
ور ته و ئي ويل چه مونږ تا ته يوحنّا بپتسما وركونكي راليږلي يو وائي چه
۲۱ ته ئي هغه راتلونكي كه مونږ دَبل چا انتظار كوو ۲۱ او په هغه ساعت
ده ډير له رنځونو او آفتونو او له بدو روحونو جوړ كړل او ډيرو ړندوته ئي
۲۲ بينائي وبخښله ۲۲ او ده ځواب وركړ و ئي ويل چه لاړ شئ او هغه څه چه
ليدلي او اوريدلي مو دي يوحنّا پرِ خبر كړئ چه ړانده ويني ګډان ګرزي
كوړيان پاكيږي كاڼه اوري مړي پورته كيږي مسكينانو ته انجيل وركيږي
۲۳ ۲۳ او مبارك هغه دي چه په ما كښ ټندک و نه خوري
۲۴ ۲۴ او چه دَ يوحنّا استازي لاړل نو ده دَ يوحنّا په باب خلقو ته
په ويلو سر شه چه تاسو دُ څه ليدلو دَپاره بيابان ته بهر تلي وئ دَ درمي دَپاره
۲۵ چه له باده خوځي څه؟ ۲۵ آيا تاسو دَ څه ليدلو دَپاره بهر تلي وئ دَ يوه
سړي دَپاره چه مهيني جامي ئي اغوستي وي څه؟ ګوره هغوي چه په
ځلقيدونكو جامو او په عيش كښ ګذران كوي په بادشاهي
۲۶ ماڼرو كښ دي ۲۶ آيا تاسو دَ څه ليدلو دَپاره بهر تلي وئ دَ پيغمبر
۲۷ دَپاره څه؟ هو زه تاسو ته وايم چه له پيغمبرنه هم لوئ ۲۷ دا هغه دي چه

دَ هغه په باب لیکلي دِي چه
گوره زه خپل استاځي ستا دَ وړاندِ اَستوم
چه ستا لار به ستا دَ وړاندِ تیاره کړي
۲۸ زه تاسو ته وایم چه له هغو نه چه له ښځو پیدا کیږي ۲۸
هیڅ له یوحنّا بپتسما ورکونکي نه لوي نشته مگر هغه چه دَ
الله په بادشاهيِ کښ وړُوکي دي له هغه نه لوي دي ۲۹ او ټول ۲۹
قوم چه دا واوریدل نو قلنگ اخستونکي دَ الله په صداقت قایل شول
چه دَ یوحنّا دَ بپتسما بپتسمه ئي مونډلي وه ۳۰ مگر فریسیانو او اهل دَ ۳۰
شرعي صلاح دَ الله له خپلو ځانونو نه رده کړه ځکه چه له هغه نه ئي
بپتسما اخستلي نه وه ۳۱ نو دَ دي پیړيِ سړي به له څه سره مشابه ۳۱
کړم او دَ چا په شان دِي ۳۲ دوي دَ هلکانو په شان دِي چه په ۳۲
بازار کښ کښیني یو بل ته ناري وهي وايي چه مونږ ستاسو دَ پارَ
شپیلۍ وغږوله او تاسو گډ نه شويِ مونږ ستاسو دَ پارَ وير وکړ او تاسو
و نه ژړل ۳۳ ځکه چه یوحنّا بپتسما ورکونکي راغي چه نه ډوډيِ خوړونکي ۳۳
او نه شراب څښونکي وه او تاسي وايِ چه دېو لري ۳۴ ابنِ آدم خوړونکي ۳۴
او څښونکي راغي او تاسي وايِ چه گوره کیډو او شراب‌خور او دَ قلنگ
اخستونکو او دَ گنهگارانو دوست دي ۳۵ او حکمت له ټولو ځامنو خپلو ۳۵
تصدیق کیږي

۳۶ او یوه له فریسیانو نه ده ته سوال وکړ چه ور سره ډوډيِ ۳۶
وخوري نو دي دَ هغه فریسي کره ورغي او ډوډيِ ته کښیناست ۳۷ او گوره ۳۷
په هغه ښهر کښ یوه ښځه وه چه گنهکاره وه خبر شوه چه دي دَ فریسي
کره په ډوډيِ ناست دي نو دَ رُخامو دبلي ئي دَ عطرو راوړه ۳۸ او ۳۸
دَ ورستو دَ ده پښو ځنه ژړیدونکي ودریدله او په اوښکو سره دَ ده دَ پښو
په لمدولو سر شوه او دَ خپل سر په ویښتو ئي وچولي او دَ ده پښي ئي
کښلولي او په عطرو ئي مږلي ۳۹ او هغه فریسي چه دي ئي بللي وه چه ۳۹

دا ئې ولیدل نو په خپل زړه کښې ئې ووِ چه که دا سړي پيغمبر وي نو
به دا ور ته معلومه وه چه دغه ښځه چه دي مسه کوي څوک او څرنګ
۴۰ ښځه ده څکه چه ګنهګاره ده ۴۰ او يسوع په ځواب کښې ور ته ووِاي شمعونه
۴۱ زه څه لرم چه در ته وئې وايم هغه ور ته ووِ اي استاذه ووايه ۴۱ دَ يوه پور ورکوونکي
دوه پوروړي وُوْ په يوه باندِ ئې پنځه سوه ديناره او په بل باند ئې پنځوس
۴۲ وُوْ ۴۲ او چه دَ اداکولو دَپارَ هيڅ ورځښنه نه وُوْ نو دواړو ته ئې وبخښل
نو ته ووايه چه له دغو دواړو نه به کوم يو په ده باندِ زياته مينه لري
۴۳ ۴۳ شمعون په ځواب کښې ور ته ووِ چه ګمان مِ دي هغه چه ور ته زيات
۴۴ بخښلي شوي دِي نو ده ور ته ووِ چه تا ښه حکم وکړه ۴۴ او دي دَ
ښځې په لوري ور وګرزيده شمعون ته ئې ووِ ته دا ښځه ويني څه؟ زه تا
کره راغلي يم اوبه دِ ځما دَ پښو دَپارَ را نه کړي مګر دغي ځما پښي په اوښکو
۴۵ ووينځلي او په خپلو ويښتو ئې وچي کړلي ۴۵ تا زه کښول نه کړم او دا له هغه
۴۶ وقتَ چه زه راننه وتم ځما دَ پښو له کښولولو و نه دريدله ۴۶ تا ځما په سر
۴۷ تيل و نه مښل مګر دي ځما په پښو عطر ومښل ۴۷ دي دَپارَ زه در ته
وايم چه دَ دي ګناهونه چه ډېر دِي ورمعاف شول څکه چه دي ډېره مينه
۴۸ وکړه ليکن هغه چا ته چه لږ معاف کيږي هغه لږه مينه کوي ۴۸ او هغي
۴۹ ته ئې ووِ چه ستا ګناهونه معاف شول ۴۹ نو هغوي چه دَ ده سره په
ډوډئِ ناست وُوْ په خپل مينځ کښې په ويلو سر شول چه دا څوک دي
۵۰ چه ګناهونه هم معاف کوي ۵۰ مګر ده ښځې ته ووِ چه ستا ايمان ته
خلاصه کړي په سلامتيا سره ورځه

## اتم باب

۱ ۱ او پس له دي داسي وشول چه دي ښهر په ښهر او کلي په کلي
ګرزيده وعظ به ئې کاوه او دَ الله دَ بادشاهِي زيري ئې ورکاوه او ورسره
۲ هغه دولس وُوْ ۲ او څو ښځې چه له بدو اَرواحونو او له رنځونو جوړي کړي شوي
۳ وې مريمه چه مجدلِيئې بللي شوه او اوه ديوان ورنه وتلي وُوْ ۳ او يوانه

دَ هیرودیس دَ ناظر خوزا ښځه او سوزانه او نوري ډیري چه له خپلو مالونو
نه ئي دَده خدمت کاوه
۴ ۴ او چه لږي ټولي جمع شه او خلق له هره ښهره ور ته راتله
۵ نو ده په مثل کښ وویل ۵ چه کرونکي دَ تخم کرلو دَپارَ بهر لاړ او دَ
کرلو په وقت څه ور نه دَ لاري په ډډه پریوت او پایمال شه او هغه دَ هوا
۶ مرغانو ونغړد ۶ او څه په کانړیزه پریوت او زرغون شه نو وچ شه ځکه
۷ چه نو ئي نه لاره ۷ او نور دَ اغزو په مینځ کښ پریوت او اغزي ورسره و
۸ ټوکیدل او هغه ئي خپه کړ ۸ او نور په ښه زمکه پریوت او زرغون شه
سل چنده بار ئي راوړ او له دي خبرو سره ئي دا په لوړ آواز وویل چه
هغه څوک چه غوږونه دَ اوریدو لري وا دِ وري
۹،۱۰ ۹ نو شاګردانو ئي تر پوښتنه وکړه چه دا مثال به څه شي ۱۰ ده ووِ
چه تاسو ته دَ الله دَ بادشاهيِ دَ رازونو پوهه درکړي شوي ده مګر نورو
ته په مثالونو کښ دي دَپارَ چه کتونکي و نه وینيِ او اوریدونکي پوه نه
۱۱،۱۲ شيِ ۱۱ نو مثال دا دي چه تخم کلام الله دي ۱۲ مګر دَ لاري په ډډه باندِ
هغه دِي چه اوریدلي ئي دِي او پس له هغه ابلیس راځي او کلام دَ هغو له
۱۳ زړونو نه راوکاږي هسي نه چه ایمان راوړِي او خلاص شيِ ۱۳ او په کانړیزه
باندِ هغه دِي چه اوریدلي ئي دِي په خوښيِ سره کلام قبول کړي او چه
۱۴ بیخ نه لري څو موده ایمان راوړِي او دَ آزمیښت په وقت وګرزي ۱۴ او هغه
چه په اغزو کښ پریوت هغه دِي چه اوریدلي دِي او په خپله لار باندِ ځي
۱۵ او فکرونه او دولت او لذتونه دَ ژوندانه ئي خپه کړِي او نه پخیږي ۱۵ او هغه
دَ ښي زمکي هغه دِي چه په ښه او په نیک زړه کښ دَ کلام اوریدونکي شي
ټینګ ئي ونیسي او په صبر سره میوه راوړِي
۱۶ ۱۶ هیڅوک نشته چه ډیوه بله کړي او په لوښي سره پټوي یا ترکټ لاندِ
۱۷ کیږدي بلکه په ډیوټ باندِ ئي ږدي تاچه ننوتونکي نور وویني ۱۷ ځکه چه
هیڅ پټ نشته چه ښکاره به نه شي او نه هیڅ پنهم شته چه معلوم

۱۸ او ښکاره به نه شي ۱۸ پس ګوريءِ څرنګ اوريءِ ځکه څوک
چه لري هغه ته به ورکړي شي او څوک چه نه لري نو له هغه نه
به هغه هم واخستي شي چه ئې ګڼړي چه ما څخه شته
۱۹ ۱۹ نو دَده مور او وروڼړه ده له راغلل او دَ ډيوْلي په سبب ئې
۲۰ ملاقات ورسره کيدلي نه شه ۲۰ او خبر ورکړي شه چه مور او وروڼړه
۲۱ دِ بهر ولاړ دِي او ستا ليدل غواړي ۲۱ نو ده په ځواب کښ ورته ووِ
چه زما مور او زما وروڼړه هغه کسان دِي چه دَ الله کلام اورِي او
عمل پرِ کوِي
۲۲ ۲۲ او دَ ورځو نه په يوه ورځ کښ داسي وشول چه دي او دَده
شاګردان په بيړيءِ کښ وختل او ده ورته ووِ چه صونړ دِ دَ درياب پورِي
۲۳ غاړي ته لاړ شو نو دوي لنګر پورته کړ ۲۳ او چه دوي لاهو وُو دي
اوده شه او په درياب باندِ طوفان راغي او بيړيءِ ډکيدله او دوي په خطري
۲۴ کښ شول ۲۴ نو دوي ورغلل دي ئې ويښ کړ و ئې ويل اي استاذَ سونړ
هلاکيږو نو دي پورته شه باد او چپه دَ اوبو ئې منع کړه نو هغوي ودريدل
۲۵ او قرارِي شوه ۲۵ او ورته وئې ويل چه ستاسو ايمان چرته دي مګر
هغوي ووِيريدل او تعجب ئې وکړ او يو له بل سره ئې ووِ چه دا څوک دي
چه په بادونو او په اوبو باندِ هم حکم کوِي او هغوي ئې منِي
۲۶ ۲۶ او دوي دَ جراسِينو ملک ته چه مخامخ دَ جليل دي ورسيدل
۲۷ ۲۷ او دي چه وچي ته ووت نو له ښهر يو سړي پرِ پيښ شه چه ديوان
ئې لرل له ډيري مُدي نه ئې جامي نه اغوستي او په کور کښ نه اوسيده
۲۸ بلکه په قبرونو کښ ۲۸ نو چه يسوع ئې وليد ناره ئې وکړه او دَده دَ وړاندِ
پريوت او په لوړ آواز سره ئې ووِ چه اي يسوع دَ الله تعالیٰ ځويه زما له تا
۲۹ سره څه کار دي زه تا ته زارِي کوم چه مه مِ عذابوه ۲۹ ځکه چه هغه ناپاک
روح ته ئې حکم وکړ چه له دي سړي نه ووزه ځکه چه هغه به ئې ډير ځله
نيوه او په زنځيرونو او په ځولانو به ئې بنداوه مګر ده به بندونه شلول

او دیـو به دي ویرانو ته زغلاوه ٣٠ او یسوع ور نه پوښتنه وکړه چه ستا ٣٠
نوم څه دي هغه ووِ چه فوج ځکه چه ډیر دیوان په هغه کښ ننه وتلي
وُو ٣١ او هغو ده ته سوال وکړ چه په مونږ دَ تهترین دَ تلو حکم مه کوه ٣١
٣٢ او هلته کښ دَ ډیرو سرکوزو یوه رمه وه چه په غره باند څریدله نو ٣٢
هغوي ده ته سوال وکړ چه مونږ ته اِذن راکړه چه په دغو کښ ننووزو
نو ده اِذن ورکړه ٣٣ او دیوان له سړي نه ووتل او په سرکوزو کښ ننوتل ٣٣
او رمي له لوري نه دریاب ته دوکړ ډوبه شوه ٣٤ او څروُونکو چه دا ٣٤
حال ولید وتښتیدل او په ښهر او په کلیو کښ ئي خبر ورساوه ٣٥ او ٣٥
هغوي ئي دَ لیدلو دَپارَ چه وشه ووتل او یسوع ته ورغلل او هغه سړي
چه دیوان ترِ وتلي وُو و ئي لید چه جامي ئي اغوستي او هوښیار دَ
یسوع پښو څخه ناست وه او وویریدل ٣٦ او لیدونکو هم هغو ته خبر ٣٦
ورکړ چه دیوان نیولي څرنګ خلاص شهٔ ٣٧ او ټولو خلقو دَ جراسیانو ٣٧
دَ وطن ده ته سوال وکړ چه له مونږ نه لاړ شه ځکه چه هغوي په
ډیري ویري کښ مبتلا شوِي وُو نو دي بیړئِ ته وختو وګرزیده
٣٨ او هغه سړي چه دیوان ترِ وتلي وُو ده ته ئي خواست وکړ چه زه به ٣٨
له تا سره یم مګر ده رخصت ورکړ و ئي ویل ٣٩ چه ته خپل کور ته ٣٩
وګرزه او هغه څه چه الله در سره کړِي دِي بیان ئي کړه او هغه لاړ شه
هر څه چه یسوع دَده دَپارَ کړِي وُو ټول ئي په ښهر کښ واورول

٤٠ او چه یسوع بیرته راغي نو خلق دَ هر کلِي دَپارَ دَ استقبال ورغلل ٤٠
ځکه چه ټولو ئي انتظار کاوه ٤١ او ګوره یو سړي یایر نوم چه دَ عبادتخانې ٤١
سردار وه راغي او دَ یسوع په پښو پریوت او سوال ئي ور ته وکړ چه ما
کره راشه ٤٢ ځکه چه یوه لور ئي وه چه په ګمان سره به دَ دولسو کالو ٤٢
وه او قریب المرګ وه او چه دي ورته نو خلقو تنګاوه

٤٣ او یوي ښځي چه له دولسو کالو ئي وینې جارِي وي او چه ټوله ٤٣
ګذاره خپله ئي په طبیبانو خرڅه کړِي وه او له هیچا ئي شفا موندلي نه شوه

۴۴ له ورستو نه راغله دَده دَ قبا لمن ئې مسه کړه او سمدستي بهیدنه
۴۵ دَ وینو ئې ودریدله ۴۵ او یسوع ووِ چه زه چا مسه کړم چه ټولو انکار وکړ
نو پطرس او هغوي چه ور سره وُو وئ ویل اې استاذه خلق په تا باندِ
۴۶ جمع کیږي او تنګوِي دِ ۴۶ یسوع ووِ چه زه چا مسه کړي یم ځکه چه زه
۴۷ پوهیږم چه څه قوت له ما نه وتلي دي ۴۷ چه ښځي ولیده چه پټیدلي نه شم
نو په لړزیدو سره راغله دَ وړاندِ ئې پرمخي پریوتله دَ ټولو خلقو دَ وړاندِ ئې بیان
وکړ چه په څه سبب ئې دي مسه کړي وه او څرنګ دستي جوړه شوه
۴۸ ۴۸ مګر ده هغي ته ووِ اې لورې ته خپل ایمان جوړه کړي یې په سلامتیا
سره ورځه
۴۹ ۴۹ ده لا دا ویل چه دَ عبادتخانې له سردار نه څوک ورته راغي او وئ
۵۰ وِچه لور دِ مړه شوه استاذ ته ډیر مه ورکوه ۵۰ چه یسوع دا واوریدل ځواب
۵۱ ئې ورکړ چه مه ویریږه تش ایمان راوړه او هغه به جوړه شي ۵۱ او کور ته
چه ورغي بې له پطرس او یعقوب او یوحنا نه او دَ جینۍ دَ پلار او مور نه ئې
۵۲ هیچا ته له خان سره دَ ننوتلو اِذن ورنه کړ ۵۲ او ټولو دَ هغي دَپارَ ژړا کوله
۵۳ او سیني ئې ټکولي مګر ده ووِ مه ژاړئ هغه مړه نه ده بلکه اوده ده ۵۳ او
۵۴ هغوي په ده پوري مسخري کولي ځکه چه دوي پوهیدل چه مړه ده ۵۴ نو
۵۵ دَ هغي لاس ئې ونیو وئې بلله وئ ویل اې جینۍ پورته شه ۵۵ نو دَ
هغي روح را وګرزیده او سمدستي پورته شوه نو ده حکم ورکړ چه څه
۵۶ دِ دَ خوراک دَپارَ ورکړي شي ۵۶ او دَ هغي مور او پلار حیران شول
مګر ده په دوي تاکید وکړ چه هیچا ته مه وایئ دا چه وشول ÷

## نهم باب

۱ ۱ او ده دولس راوبلل هغوي ته ئې په ټولو دیوانو او دَ رنځونو په جوړولو
۲ قدرت او اختیار ورکړ ۲ او دوي ئې دَ الله دَ بادشاهي دَ وعظ
۳ کولو دَپارَ او دَ ناجوړتیا دَ شفا ورکولو دَپارَ واستول ۳ او ورته وئې ویل چه
دَ خپل لارې دَپارَ هیڅ مه اخلئ نه همسا نه توشه دان نه ډوډئ

۴ نه سپین او مه دوه قمیصونه اخلئ ۴ او په هر کور کښ چه ننوزئ هلته
۵ کښ پاتي شئ او له هلته سره ووځئ ۵ او هرڅوک چه تاسو قبول نه
کړي نو چه له هغه ښهر نه ووزئ دَ خپلو پښو گرد په هغو باندِ دَ
۶ شاهدئ دَپارَ وڅنډئ ۶ نو هغوي ووتـــل کلي په کلي تيريدل او په
هرځاي کښ ئي زيري دَ انجيل ورکاوه او شفا ئي بخښله
۷ ۷ ليکن هر څه چه شوي وُو هيروديس حاکم اوريدل او حيران
۸ کيده څکه څينو ويل چه يوحنّا له مړو نه پورته شوي دي ۸ او څينو
چه الياس ظاهر شوي دي او نورو چه يو له وړاندينو نبيانو نه پاڅيدلي
۹ دي ۹ او هيروديس ويل چه د يوحنّا سر ما پريکړي دي نو دغه څوک
دي چه دَده په حق کښ داسي اورم او دَ ده دَ ليدلو طلب ئي کاوه
۱۰ ۱۰ او چه رسولان را وجاروتل هر څه چه ئي کړي وُو ده ته ئي
بيان کړل او ده هغوي له ځان سره کړل يواځي يوه ښهر ته چه بيتِ صيدا
۱۱ بللي شي لاړ شه ۱۱ او ټولي چه خبر شول ورپسي شول او ده هغوي
قبـول کـړل دَ الله دَ بادشاهِي په باب کښ ئي خبري اتري ورسره
۱۲ وکړي او دَ چا چه دَ شفا حاجت وه شفا ئي ورکوله ۱۲ او چه ورځ په
تيريدلو شوه هغه دولس ته ور ته راغله ده ته ئي ووِ خلق رخصت
کړه چه چاپيره کلو ته او اطرافو ته لاړ شي او شپه کړي او خوراک
۱۳ بيامومي چه مونږ دلته په بيابان کښ يو ۱۳ ليکن ده ور ته ووِ چه تاسو
خوراک ورکړئ مګر دوي ووِ چه مونږ څخه بي له پنځو ډوډو او دَ دوو
کبانونه نور هيڅ نشته بي له دي نه چه مونږ به لاړ شُو دَ دي ټولو خلقو دَپارَ به
۱۴ خوراک وپيرو ۱۴ څکه چه په ګمان سره به پنځه زره سړي وُو نو ده خپلو
۱۵ شاګردانو ته ووِ چه هغوي پنځوس پنځوس صف په صف کښينوئ ۱۵ او هغوي
۱۶ دا رنګ وکړه او ټول ئي کښينول ۱۶ نو ده هغه پنځه ډوډئ او دوه کبان
واخستل او دَ آسمان په لوري ئي وکتل او برکت ئي پرِ وغوښت او ماتي ئي
۱۷ کړلي او شاګردانو ته به ئي ورکولي چه دَ ټولي دَ وړاندِ ئي کيږدي ۱۷ او هغوي

وخوارهٔ او تول ماړه شول او دَ هغو ټکړو نه چه ور نه زیاتې شوي دولس
ټوکرَي ئې واخستلې
١٨ ١٨ او داسي وشول چه دي په تنهائيِ کښ په دعا مشغول وه شاګردان
ور سره ووُ نو ده له هغو پوښتنه وکړه و ئې ويل چه خلق څه وائي چه زه
١٩ څوک يم ١٩ دوي په ځواب کښ ور ته وويل چه يوحنّا بپتسما ورکونکي او
٢٠ ځينو الياس او ځينو دا چه يو له وړاندينو نبيانو نه پورته شوي دي ٢٠ او
ده هغوي ته ووِ چه باري تاسو څه وائِيِ چه زه څوک يم پطرس په ځواب
٢١ کښ ووِ چه مسيح دَ الله ٢١ نو ده په تاکيد سره هغوي ته حکم وکړ چه دا
٢٢ هيچا ته مه وائيِ ٢٢ او و ئې ويل چه ضرور دي چه ابنِ آدم ډير څه وزغمي
او له سپين ږيرِي او له بزرګان دَ کاهنانو او له کاتبانو نه رد کړي شي او ووژلي شي
٢٣ او په دريمه ورځ پورته کړي شي ٢٣ ده ټولو ته ووِ چه که څوک غواړي چه
په ما پسي راشي نو له خپله ځانه دِ انکار وکړي او ورځ په ورځ دِ خپل
٢٤ صليب پورته کوي او په ما پسي دِ راشي ٢٤ او هر څوک چه غواړي چه خپل
ځان خلاص کړي هغه به ئې ورک کړي او هر څوک چه خپل ځان ځما دَ پارَ ورک
٢٥ کړي هغه به ئې خلاص کړي ٢٥ څکه چه سړي به څه نفع حاصله کړي چه
٢٦ ټوله دنيا وګټي او خپل ځان ورک يا زيان ئې کړي ٢٦ څکه چه هر څوک
چه له ما نه او ځما له کلام نه وشرميږي ابن آدم به هم هر کله چه
به خپل او دَ خپل پلار او دَ پاکو فرښتو له جلاله سره راشي له هغه
٢٧ به وشرميږي ٢٧ او زه تاسو ته رښتيا وايم چه ځني له هغوي نه چه
دلته ولاړ دي دَ مرګ خوند به هرګز و نه څکي تر هغه پوري چه بادشاهي
دَ الله و نه وينِي
٢٨ ٢٨ او يو اته ورځي پس له دي خبرو داسي وشول چه پطرس
او يعقوب او يوحنّا ئې له ځان سره واخستل دَ دُعا کولو دَ پارَ غره ته
٢٩ وخوت ٢٩ او داسي وشول چه په دعا کولو کښ ئې دَ څهري صورت بدل
٣٠ شه او جامي ئې سپيني او بريښيدونکي شوي ٣٠ او ګوره دووتنو ور سره

خبري کولې چه موسیٰ او الیاس وُو ۳۱ هغوي په جلال کښې ښکاره شول ۳۱
او دَده دَ رحلت خبري چه په اورشلیم کښې ئې پوره کونکي وه کولې ۳۲ او ۳۲
پطرس او هغه چه ورسره وُو له خوبَ درانه شول اوچه ښه ویښ شول
دَده جلال ئې ولید او دَ هغو دوو سړو چه ورسره ولاړ وُو ۳۳ او ۳۳
داسي وشول چه هغوي له ده نه جدا کیدل نو پطرس یسوع ته ووِ اي استاذه
ښه دِي چه مونږ دلي یُو او دري جونګړي جوړي کړُو یوه ستا دپارَ او یوه دَ
موسیٰ او یوه دَ الیاس اودي نه پوهیده چه څه وایي ۳۴ ده لا دا خبره ۳۴
کوله چه اوریځ راغله او په دوي ئې سوري وغوړاوه اوچه دوي په اوریځي
کښې ننوتل هغوي ووېریدل ۳۵ او له اوریځي نه آواز راغي و ئې ویل چه ۳۵
دا څما محبوب څوي دي ده ته غوږ نسئِ ۳۶ او چه آواز وشه یسوع یواځي ۳۶
وموندلي شه او دوي چپ شول او هغه څه چه په هغو ورځو کښې ئې
لیدلي وُو هیچا ته ئې خبر ورنه کړ
۳۷ او په دویمه ورځ داسي شول چه دوي له غره نه راکوز شول ۳۷
نو لوي ټولي پرِ پیښ شه ۳۸ نو کوره یو سړي له ټولي نه په نارو سره ورته ۳۸
ووِ چه اي استاذه زه درته زاري کوم څما په څوي نظر وکړه څکه چه هغه
یواځي څوي مِ دَي ۳۹ او کوره چه روح ئې نیسِي او ناڅاپه چغي وهي او و ۳۹
ئې مروړي چه څګونه کوِي او په مشکل سره ئې پریږدي او زخمي ئې کړي
۴۰ او ستا شاګردانو ته مِ زاري وکړي چه وئې باسِي لیکن و ئې نه کړې ۴۰
شه ۴۱ او یسوع په ځواب کښې ورته ووِ چه اي بي‌ایماني کږي پیړۍ زه به ۴۱
تر څو له تاسو سره یم او ستاسو زغم به کوم خپل څوي دلي راوله
۴۲ او چه لا راته دیو هغه را وویشت او په سخت شان سره ئې وشلاوه ۴۲
مګر یسوع ناپاک روح وټاټه او هلک ئې روغ کړ او خپل پلار ته ئې وسپاره
او ټول دَ الله لویئ ته حیران شول
۴۳ او چه ټولو به هغو ټولو کارونو چه ده کول تعجب کاوه نو ده خپلو شاګردانو ته ۴۳
ووېل ۴۴ چه دا خبري په خپلو غوږونو کښې کیږدئ څکه چه ابن آدم به دَ سړو په لاسونو ۴۴

۴۵ کښې وسپارلې شِي ۴۵ هغوي په دې خبرې پوه نه شول او وړ نه پټه شوه
چه په فهم کښې يُ را نه شِي او دوي دَ دې خبرې له پوښتنې کولو له
ده نه ويريدل

۴۶ ۴۶ او دَ دوي په مينځ کښې حجّت وشه چه له هغو نه به کوم يو
۴۷ لوي وِي ۴۷ يسوع دَ هغو دَ زړونو په حجّت پوه شه يو هلک يُ واخست
۴۸ او خپل څان څخه يُ ودراوه ۴۸ او هغوي ته يُ ووِ چه هغه څوک چه دا
هلک څما په نوم قبول کړِي ما قبلوِي او هغه څوک چه ما قبلوِي هغه قبلوِي
چه زه يُ راستولي يم څکه هغه چه په تاسو کښې له ټولو وړوکي دي
هم هغه به لوي وِي

۴۹ ۴۹ او يوحنّا په ځواب کښې ووېل چه اي استاذه مونږ يو سړي
وليد چه ستا په نوم يُ ديوان يستل او مونږ منعَ کړ څکه چه په مونږ
۵۰ پسې نه ګرزِي ۵۰ او يسوع ور ته ووېل چه مه يُ منعَ کوئِ څکه چه
هغه څوک چه ستاسو مخالف نه دي ستاسو په طرف دِي

۵۱ ۵۱ او داسي شول چه ورځي دَ پورته کيدلو دَده په پوره کيدلو شولي
۵۲ نو ده خپل مخ دَ اورشليم سفر ته ټينګ کړ ۵۲ او دَ څان دَ وړاندِ يُ
استاځي واستول او هغوي لاړل دَ سامريانو په يو کلِي کښې ننوتل چه دَده
۵۳ دَپارَ تياري وکړِي ۵۳ او هغوي دي قبول نه کړ څکه چه دَده مخ دَ اورشليم
۵۴ و سفر ته وه ۵۴ او دَده شاګردانو يعقوب او يوحنّا دا وليدل و يُ ويل
اي خداوند که غواړي نو به ووايُو چه اور له آسمانَ راکوز شِي او
۵۵ ۵۶ هغه وسيځِي ۵۵ ليکن دي را وګرزيده تنبيه يُ کړل ۵۶ نو دوي بل
کلِي ته لاړل

۵۷ ۵۷ او چه دوي په لاري تلل نو چا ور ته ووېل هرچرته چه ته
۵۸ ځي زه درپسي ځم ۵۸ او يسوع ور ته ووِ چه لومبړي غارونه لرِي او دَ
۵۹ هوا مرغان جالي ليکن دَ ابنِ آدم دَ سر لګولو دَپارَ ځاي نشته ۵۹ او يو بل
ته يُ وُوِ چه په ما پسي شه هغه ووېل اي خداونده ما له اجازت

راکړه چه ورښبي لاړ شم خپل پلار خښ کړم ۶۰ نو ور ته ئي ووِ پرېږده ۶۰
مړي دِ خپل مړي خښ کړي مګر ته لاړ شه دَ الله بادشاهِي خوره وه
۶۱ او بل هم ووِ اي خداونده زه به په تا پسي ځم مګر ورښبي ما ته اِذن ۶۱
راکړه چه له هغو نه چه ځما په کور کښں دِي رخصت واخلم ۶۲ مګر يسوع ۶۲
هغه ته ووِ چه هر څوک چه لاس خپل په يوي کيږدِي ورستو ګوري هغه
دَ الله دَ بادشاهِي لايق نه دي

## لسم باب

۱ پس له دي خداوند اويا تنه نور هم ودروِل او دوه دوه ئي دَ خپل ۱
مخ دَ وړاندِ هر ښهر او هر ځاي ته چه دي ور ته واستول ۲ او هغوي ۲
ته ئي ووِ چه فصل خو ډير دي مګر لوګړي کم نو دَ فصل خداوند ته
زاري وکړئِ چه لوګړي خپل فصل ته ورولېږِي ۳ لاړ شئِ ګوره زه تاسو ۳
لکه ګډوري دَ ليوانو په مينځ کښں اَستوم ۴ مه ګڅوړه درسره وړي نه ۴
نوښه دان نه څپلئِ او په لاره کښں په هيچا سلام مه اَچوئِ ۵ او په کوم ۵
کور کښں چه ور ننوزئِ ورښبي دوايئِ چه دي کور ته دِ سلام وِي ۶ نو ۶
که هلته کښں دَ سلامتئِ ځوي وِي ستاسو سلام به په هغه باندِ پاتي
شِي او که نه نو په بيرته به در وګرزي ۷ او په هغه کور کښں پاتي شئِ ۷
او هر څه چه ورځنه وِي هغه وخورئِ او وڅښئِ ځکه چه مزدور دَ خپلي
مزدورئِ حقدار دي له يو کوره بل کورته مه ځئِ ۸ او هر ښهر ته چه ۸
ور ننوزئِ او هغوي مو قبول کړي نو هر څه چه ستاسو په مخ کښں کيښودلي
شِي و ئي خورئِ ۹ او رنځورانو ته ئي شفا ورکوئِ او ور ته وايئِ چه بادشاهِي ۹
دَ الله تاسي ته نزدي رسيدلي ده ۱۰ او هر ښهر ته چه ننوزئِ او قبول ۱۰
مو نه کړي نو بهر دَ هغه په لار ووزئِ او وايئِ ۱۱ چه هغه ګرد چه ۱۱
ستاسو له ښهرَ ځمونږ په پښو باندِ پريوت په تاسو ئي څنډو مګر په دي
پوه شئِ چه بادشاهِي دَ الله تاسو ته نزدي رسيدلي ده ۱۲ زه تاسو ته وايم ۱۲
چه په هغي ورځي به حال دَ سدوم دَ هغه ښهر له حالَ آسان وِي

۱۳ ۱۳ هئ په تا اي قرازينَ هئ په تا اي بيتِ صيدا ځکه چه که چرِي هغه
قدرتونه چه په تاسي کښ کړي شوي دِي په صور او په صيدا کښ
کړِي شوِي وِي نو له ډيري مُدي به په ټټوِ او په ايرو کښ ناست
۱۴ توبه به ئي کړي وه ۱۴ مګر په عدالت کښ به حال دَ صور او صيدا ستا
۱۵ له حالَ آسان وِي ۱۵ او اي کفرنحومَ ته ترآسمانَ پوري هسک به کړي
۱۶ شي څه؟ په دوزخ کښ به کوز لاړ شي ۱۶ هغوي چه ستاسو اوري څما
اورِي او چه تاسو ردکوِي ما ردکوِي او هغه چه ما ردکوِي هغه چه
زه ئي راستولي يم رد کوِي
۱۷ ۱۷ او هغه اويا له خوښيِ سره بيرته راغلل او وئي ويل اي
۱۸ خداوندَ ستا په نوم ديوان هم څموږ تابعدارِي کوِي ۱۸ نو ورته ئي وويل
۱۹ چه ما شيطان وليد چه له آسمانَ دَ برېښنا په شان راپريوت ۱۹ ګوره ما
تاسو له اختيار درکړي دي چه ماران او لړمان او ټول قوّت دَ دښمن
۲۰ پائمال کړئ او هيڅ شي به تاسي ته ضرر ونه رسوِي ۲۰ مګر په دي خوشحالي
مه کوئ چه روحونه ستاسو تابعدارِي کوِي بلکه خوشحالِي کوئ چه ستاسو
نومونه په آسمانونو کښ ليکلِي شوِي دِي
۲۱ ۲۱ هغه ساعت په روح القدس کښ ښاد شه او وئي ويل اي پلارَ
دَ آسمانَ او دَ زمکي خداوندا زه ستا شکر کوم ځکه چه تا دا خبري له عالمانو
او له دانايانو پټي کړي او به ماشومانو دِ ظاهري کړي هو اي پلاره
۲۲ چه هم داسي ستا په نظر کښ خوښه شوه ۲۲ هر څه څما له پلاره ما ته
وسپارلِي شول او هيڅوک نه پوهيږي چه څوي څوک دي بي له پلاره او پلار
۲۳ څوک دي بي له څويَ او بي له هغه چا چه څوي ئي ظاهرول غواړي ۲۳ او
شاګردانو ته ئي مخ کړ په پټه ئي ورته ووِ چه مبارکي هغه سترګي دِي چه
۲۴ داخيزونه وينِي چه تاسو ئي وينئِ ۲۴ ځکه چه زه تاسو ته وايم چه ډيرو
نبيانو او بادشاهانو آرزو لرله چه هغه چه تاسو ئي وينئِ وِ ئي وينِي مګر و
ئي نه ليدل او چه تاسو ئي اورئِ وا ئي ورِي مګر وا ئي نه وريدل .

۲۵ او ګوره یو عالم دَ شرعي دَده دَ ازمېښت دَپارَ پورته شه وئي ۲۵
وېل چه اي استاذ څه وکړم چه دَ ابدي ژوندانه وارث شم ۲۶ ده هغه ۲۶
ته ووِ چه په توریت کښ څه لیکلي دِي ته څرنګ لولي ۲۷ هغه په ځواب ۲۷
کښ ووِ چه ته لِه خداوند الله خپل سره په خپل ټول زړه او په خپل
ټول ځان او په خپل ټول قوّت او په خپل ټول عقل محبّت کوه او دَ خپل
ګاونډي سره دَ خپل ځان په شان ۲۸ نو ور ته ئې ووِ چه تا سم ځواب ۲۸
راکړ دا کوه نو ژوندي به شې ۲۹ لیکن هغه دا وغوښتل چه خپل ځان ۲۹
صادق کړي یسوع ته ئې ووېل چه نو څما ګاونډي څوک دي ۳۰ یسوع په ځواب ۳۰
کښ ور ته ووېل چه یو سړي له اورشلیمَ اریحا ته کوزیده او په غلو پرېوت
دي ئې بربنډ او ژوبل کړ ور نه لاړل او مړ ژواندي ئې پرېښود ۳۱ اتفاقاً یو ۳۱
کاهن په هغې لاري ته نو چه هغه ئې ولید په څنګ ور نه تېر شه ۳۲ په ۳۲
دي شان یو لیوي هم هغه ته راغي او هغه ئې ولید په دِده ور نه تېر
شه ۳۳ مګر یو سامري مسافر هغه څخه ورغي او چه وئي لید نو زړه ۳۳
ئې پرِ وسه ۳۴ نو ورغي په پرهارونو ئې تیل او شراب توي کړل و ئې ۳۴
ترل او په خپل خاروِي باندِ ئې سور کړ او کاروان سراي ته ئې بوته
او خدمت ئې وکړ ۳۵ او صباح له ئې دوه دیناره راوېستل دَ سراي خاوند ۳۵
ته ئې ورکړه او وئي ویل چه دَده خبرداري کوه او چه ستا زیات خرڅ
پرِوشي نو چه زه راوګرزم در به ئې کړم ۳۶ پس له دغو درېو تنو نه دَ ۳۶
هغه چا چه په غلو کښ پرېوت کوم یو ګاونډي ګڼزي ۳۷ هغه ووِ هغه ۳۷
چه رحم ئې پرِ وکه نو یسوع ورته ووِ چه ورځه ته هم داسي کوه
۳۸ او چه دوي په لاري تلل نو دي یوه کلي ته ننوت نو یوي ښځي ۳۸
مرتا نومي په خپل کور کښ قبول کړ ۳۹ او دَ هغې یوه خورده چه مرنیمه بللي ۳۹
شوه هغه دَ خداوند پښو څخه کښېناسته دَده کلام ئې اورېده ۴۰ لیکن مرتا ۴۰
له ډېرِه خدمته پرېشانه شوه نو دَده دَ وړاندِ راغله و ئې وېل اي خداوند
ته پروا نه لري چه خورمِ زه یواځي خدمت ته پرېښي یم نو ته ورته ووایه

۴۱ چه مدد راسره وکړي ۴۱ او خداوند په ځواب کښې ور ته وویل اي
مارتا مارتا ته دَ ډیرو څیزونو په اندیښنه او په تلوسه کښې یې۔
۴۲ ۴۲ مګر یو څیز ضرور دي مریمې هغه ښه برخه غوره کړې ده
چه ور نه به وا نه خستلې شي ❖

# یولسم باب

۱ ۱ او داسي وشول چه ده په یو ځاي کښې دعا کوله چه تمام یې کړه نو
یوه له شاګردانو نه یې ور ته ووِ چه اي خداونده مونږ ته هم دعا
۲ کول وښیه لکه چه یوحنّا خپلو شاګردانو ته هم وښوه ۲ نو ده هغوي
ته وویل هر کله چه تاسو دعا کوئِ نو وایئِ اي پلاره ستا نوم دِ
۳ تقدّس شي بادشاهي ستا دِ راشي ۳ روزي ځمونږ ورځ په ورځ راکوه
۴ ۴ او ګناهونه ځمونږ را وبخښه ځکه چه مونږ هم خپل پوروړي بخښو
او ازمیښت ته مو مه بیایه
۵ ۵ او ده ور ته ووِ چه له تاسو څوک دي چه دوست یې وي
او نیمه شپه هغه له ورشي او ور ته ووایي اي دوسته ما ته دري
۶ ډوډيِ پور راکړه ۶ ځکه چه ځما دوست له سفر نه ما ځخه راغلي
۷ دي او ما ځخه هیڅ نشته چه دَ هغه دَ وړاندِ یې کیږدم ۷ او هغه به
له دننه ځواب ورکړي ور ته به ووایي چه ما مه خپه کوه اوس دروازه
بنده ده او ځما هلکان له ما سره په کټ دِي زه پورته کیدلي نه شم چه
۸ یې درکړم ۸ زه تاسو ته وایم اګر چه هغه به دَ دوستيِ په سبب ور پورته
نه شي چه یې ورکړي مګر دَده دَ منّت کولو په سبب به ور پورته شي
۹ او چه څه یې پکار وِي ور به یې کړي ۹ او زه تاسو ته وایم چه
غواړئِ نو تاسو ته به درکړې شي لټوئِ نو به یې مومئِ ټکوئِ نو به
۱۰ ستاسو دَپارَ پرانتلي شي ۱۰ هر څوک چه غواړي نو اخلي او هغه څوک
۱۱ چه لټوي مومي او چه ټکوي هغه ته به پرانتلي شي ۱۱ او په
تاسو کښې کوم داسي پلار دي چه ځوي به تري ډوډيِ و غواړي

۱۲ او دي به کانړي ورکړِي څه؟ او يا به کب او دَ کب په ځاي به مار ورکړِي څه؟ ۱۲
۱۳ ياهګۍ وغوارِي لړم به ورکړِي څه؟ ۱۳ نو تاسي چه بد يئِ او په ورکولو دَ ښو ښو
څيزونو خپل اولاد ته پوهيږئِ نو څومره زيات به ستاسو پلار چه په آسمان
دي هغوي له چه غوارِي روحُ القدس به ورکړِي
۱۴ ۱۴ او دهٔ يو ګنګ ديـو وويسته او چه ديو ووت نو داسي وشول چه هغـه
۱۵ ګنګ ګويا شه نو خلقو تعجب وکړ ۱۵ مګر څنو وويل چه دي ديوان په مددګارئِ دَ
۱۶ بعلزبول چه سردار دَ ديوانو دي وباسِي ۱۶ او نورو دَ آزميښت دَپارَ اسماني نخښه
۱۷ ورنه وغوښته ۱۷ مګر دي دَ هغوِ په خيالونو پوه شه او ورته وئ ويل چه
هر بادشاهت چه په کورکښ سره مخالف شِي هغه ويرانيږِي او چه کور په کور
۱۸ خلاف شِي ويجاړيږِي ۱۸ نو شيطان هم که په خپل کورکښ سره مخالف شِي نو
بادشاهت به يئ څرنګ قايم پاتي شِي چه تاسي وايئ چه زه ديوان دَ بعلزبول
۱۹ به مددګارئِ سره وباسم ۱۹ او که زه ديـوان دَ بعلزبول په مدد سره وباسم نو
ستاسو ځامن يئ دَچا په مدد وباسِي له دي سببَ به هغوي په تاسو منصفان
۲۰ شِي ۲۰ مګر که زه يئ دَ الله په ګوِتي سره وباسم نو بادشاهِي دَ الله تاسو ته را
۲۱ رسيدلي ده ۲۱ هر کله چه زورور سړي وسله وتړِي دَ خپل کور ساتنه کوِي
۲۲ دَ هغه مال سلامت اوسِي ۲۲ ليکن که هغه چه له هغه نه قوّت ناک دي ور
ته راشِي او دي مغلوب کړِي نو هغه واړه وسله چه ده په هغي باور لاره ور نه
۲۳ به يئ واخلي او لوټ به يئ وويشِي ۲۳ هغه څوک چه له ما سره نه دَي
له ما نه مخالف دَي او چه له ما سره يئ نه ټولوِي خواره به يئ کړِي -
۲۴ ۲۴ او هر کله چه پليت روح له سړي نه ووزِي نو په وچو ځايونو دَ آرام
لټولو دَپارَ تيريږِي او چه نه يئ مومِي نو وايِي چه خپل کور ته چه ور نه
۲۵ را وتلي يم ور وبه ګرزم ۲۵ او چه ورشِي نو هغه جارو کړِي او ښايسته
۲۶ و مومِي ۲۶ نو لاړ شِي اوه روحونه نور چه له هغه نه زيات بد دِي راواخلِي
او په هغه ځاي کښ ننوزِي په کښ اوسِي او دَ هغه سړِي ورستي حالونه
له ورنبيو نه بدتر شِي

۲۷ ۲۷ او داسي وشول چه ده دا ويل يوي ښځي له ټولي نه په اوچت
آواز سره ور ته ووِ چه مبارکه هغه ګېډه ده چه په تا بارداره شوه
۲۸ او هغه تيِ چه تا ورودل ۲۸ ده ووِ هو زيات مبارک هغه دِي چه کلام
دَ الله واورِي او وئي ساتِي
۲۹ ۲۹ او چه ډېر ټولِي ور ته جمع کيدل نو ده وويل چه دا پيړِئ
بده پيړِئ ده دوي نخښي غواړِي ليکن بي له نخښي دَ يونس نه به هيڅ
۳۰ نخښه دوي ته ور نه کړي شِي ۳۰ لکه چه يونس دَ نينوي دَ خلقو
دَپارَ نخښه شه هم هسي به ابنِ آدمِ دَ دي پيړِئ دَپارَ وِي
۳۱ ۳۱ دَ جنوب ملکه به دَ عدالت په ورځ دَ دي پيړِئ له سړو سره پورته
شِي او دوي به پړه کړِي ځکه چه هغه دَ زمکي له کناري نه دَ سليمان
دَ حکمت دَ اوريدلو دَپارَ راغله اوګوره دلته له سليمانَ يو زيات لوي
۳۲ دي ۳۲ دَ نينوي سړِي به دَ عدالت په ورځ دَ دي پيړِئ سره
پورته شِي او دوي به پړه کړِي ځکه چه دوي دَ يونس په منادئِ توبه
وکړه اوګوره دلته له يونسَ يو زيات لوي دي
۳۳ ۳۳ هيڅوک نشته چه ډيوه بله کړِي او په پټ ځاي کښ يا دَ اوړي دَ لاندِ
۳۴ ږدِي بلکه په ډيوټ باندِ ځکه چه ننوتونکي ئي نور ووينِي ۳۴ دَ
جُسي ډيوه سترګه ده نو هر کله چه ستا سترګه صافه وِي نو ستا
ټوله جُسه به روښانَ وِي ليکن چه بده وِي نو ستا ټول جُسه به
۳۵ تياره وِي ۳۵ نو ګوره هسي نه وِي چه هغه روښنائِي چه په تا کښ
۳۶ ده تياره شِي ۳۶ نو که ستا ټول جُسه روښانَ وِي او هيڅ اندام
تياره پاتي نه شِي نو به ټول داسي روښانَ وِي لکه چه ډيوه به خپلي
رڼا سره تا روښانه کړِي
۳۷ ۳۷ او چه ده خبري کولي نو يو فريسي ور ته سوال وکړ چه
له ما سره ناشته وخوره نو دي ور ننوت او خوراک ته کښيناست -
۳۸ ۳۸ او چه فريسي وليد چه ده له خوراک نه وړاندِ و نه لنبل نو تعجب

ئې وکړ ٣٩ لیکن خداوند ور ته وویل اي فریسیانو تاسوخو پیالي ٣٩
او تالي باهر صافویِٔ مګر دننه ستاسو له لوټه او له بدئِ نه
ډک دي ٤٠ اي نادانو هغه چا چه باهر جوړ کړي دي دننه ئې جوړِ ٤٠
کړي نه دي څه ؟ ٤١ لیکن هر څه چه تاسو څخه وِي په خیرات ئې
ورکړِئ او ګورئِ ټول څیزونه به ستاسو دَپارَ پاک وِي
٤٢ مګــر هئ په تاسو فریسیانو بانِدِ چه له ویلینې او له ٤٢
سپیلنې او له هر قسمَ دَ سبزو عُشر ورکوئِ او دَ الله له عدالتَ او
له محبّتَ غورځئِ لازم وُو چه دا مو کړي دي او هغه بل مو هم پرېښي
نه وِي ٤٣ هئ پــه تاسو فریسیانو بانِدِ چه په عبادتخانو کښ ٤٣
لوړ ځاي او په بازارونو کښ سلامونه غوره کوئِ ٤٤ هئ پــه ٤٤
تاسو بانِدِ چه دَ هغو پټو قبرونو په شان یئِ چه خلق بي‌خبره
وربانِدِ ګرزیږي
٤٥ نو یوه له معلّمانو دَ شرعي په ځواب کښ ور ته ووِ اي ٤٥
استاذَ په دی خبرو مو ملامت کوي څه ؟ ٤٦ ده ور ته وویل چه هئ ٤٦
په تاسو دَ شرعي په معلّمانو بانِدِ څکه چه په خلقو بانِدِ درانه بارونه
باروئِ او پخپله په هغو بارونو بانِدِ یوه ګوته هم نه لګوئِ ٤٧ هئ په ٤٧
تاسو بانِدِ څکه چه قبرونه دَ پیغمبرانو جوړوئِ مګر ستاسو پلرونو هغوي
قتل کړل ٤٨ نو تاسو شاهدان یئِ دَ خپلو پلرونو په کارونو بانِدِ او مني ئې ٤٨
څکه چه هغوي قتل کړل او تاسو ئې قبرونه جوړوئِ ٤٩ څکه حکمت دَ ٤٩
الله هم ویلي دِي چه زه به نبیان او رسولان هغوي ته واستوم او هغوي
به څني و وژني او و به ئې شړِي ٥٠ تا چه دَ ټولو نبیانو وِیني چه ٥٠
له بنیادَ دَ دنیا نه توي شوي دِي له دي زماني نه به و غوښتلي شِي
٥١ دَ هابیل له وینو نه دَ ذکریاه تر وینو پوري چه دَ قربانګاه او دَ هیکل ٥١
په مینځ کښ ووژلي شه هو تاسو ته وایم چه له دي پیړئ نه به
و غوښتلي شِي ٥٢ هئِ په تاسي بانِدِ اي معلّمانو دَ شرعي څکه چه کُنجي دَ ٥٢

علم مو واخستله نهِ تاسو پخپله ننوتيِ او ننوتونکي مو منع کړل
۵۳ ۵۳ او چه دي له هغه ځايه ووت نو کاتبان او فريسيان په
سختيِ سره وړپوري ونښتل او دَ ډيرو خبرو په ويلو يئ زور راوړ
۵۴ ۵۴ او ور ته غلي وُو چه څه دَده له خولي نه ونسي ❖

# دولسم باب

۱ آ په دي مينځ کښ چه په زرګونو خلق جمع شول تر دي چه يو بل
به سره لتاړول هغه خپلو شاګردانو ته په ويلو سر شه چه اول دَ فريسيانو
۲ له خميري نه چه رياکاري ده ځانونه ساتيِ ۲ هيڅ څيز پټ نشته چه
۳ ښکاره کړي به نه شيِ او هيڅ پنهم چه معلوم کړي به نه شي ۳ دَ دي دَپاره
هر څه چه تاسو په تياره کښ ويلي دي په رڼا به واوريدلي شي او
هغه چه تاسو په کوټو کښ په غوږونو کښ ويلي دي په بامونو
۴ به منادي وکړي شي ۴ مګر زه تاسو ته اي ځما خپلو دوستانو وايم چه
له هغو نه چه دَ جسم قاتلان دي او پس له هغه هيڅ زيات کولي
۵ نه شي مه ويريږيِ ۵ زه يئ درښيئم چه له چا نه ويريږيِ له هغه نه
ويريږيِ چه پس له وژلو په جهنم کښ دَ غورزولو اختيار لري هو
۶ زه در ته وايم چه له هغه نه ويريږيِ ۶ پنځه چرچڼي په دوه پيسي
نه خرڅيږيِ څه ؟ نو هم له هغو نه يوه دَ الله دَ وړاندِ هيره شوي
۷ نه ده ۷ بلکه ستاسو دَ سر ويښته هم ټول شميرلي شوي دي نو مه
۸ ويريږيِ تاسو له ډيرو چرچڼو نه بهتر يئ ۸ او زه تاسو ته وايم
هر څوک چه دَ خلقو دَ وړاندِ ځما اقرار وکړي نو ابنِ آدم به هم دَ الله
۹ دَ فرښتو دَ وړاندِ په هغه اقرار وکړي ۹ مګر هغه چه دَ خلقو دَ وړاندِ
له ما نه انکار وکړي نو دَ الله دَ فرښتو دَ وړاندِ به له هغه انکار
۱۰ وکړي شي ۱۰ او هر هغه څوک چه دَ ابنِ آدم په خلاف څه خبره وکړي
ور ته به معافه کړي شي مګر هغه څوک چه دَ روح القدس په خلاف

کفر ووايِي معاف به نه کړي شِي ۱۱ او هر کله چه هغوي تاسو په ۱۱
عبادتخانو کښ دَ حاکمانو او دَ اختيار لرونکو دَ وړاندِ بوزِي نو
انديښنه مه کوئِ چه څرنګ يا څه ځواب به ورکړئِ يا څه به ووايئِ
۱۲ ځکه چه روح القدس به ئي په هغه ساعت در ته وښيي چه څه ۱۲
ويل بايده دِي
۱۳ او له ښولِي نه يوه ور ته ووِ اي استاذه خما ورور ته ۱۳
ووايه چه له ما سره ميراث وويشِي ۱۴ نو ور ته ئي وويل اي سړيه ۱۴
چا زه په تاسو قاضِي يا ويشونکي مقرر کړي يم ۱۵ هغوي ته ئي وويل ۱۵
خبردار شئِ او له هري طمعي نه ځان وساتئِ ځکه چه دَ چا ژوند
دَ هغه دَ مال په زياتوِلي سره نه دي ۱۶ او ده هغوي ته يو مثال ۱۶
ووايه و ئي ويل چه دَ چا دولتمند پټي دير بارور شه ۱۷ او له خپل ۱۷
ځان سره ئي فکر کاوه و ئي ويل چه څه وکړم چه ځاي نه لرم چه
خپل حاصل په کښ انبار کړم ۱۸ نو و ئي ويل چه باري داسي به ۱۸
وکړم چه خپلي انبارخانې به ونړوم او زياتي لوي به جوړي کړم او هلته به
خپل ټول غلي او مال جمعَ کړم ۱۹ او خپل ځان ته به ووايم اي ۱۹
ځانه تا څخه دير مال دَ ديرو کالونو دَپارَ کيښودلِي شوي دي ارام کوه
خوره څښه خوشحالِي کوه ۲۰ مګر الله ور ته ووِ اي نادانه په دي شپه ۲۰
کښ به ستا ځان له تا نه وغوښتلي شِي نو هغه څيزونه چه تا
تيار کړي دِي دَ چا به شِي ۲۱ هم هسي هغه دي چه دَ خپل ځان ۲۱
دَپارَ خزانه جمعَ کوِي او دَ الله په نزد دولتمند نه دي
۲۲ او ده خپلو شاګردانو ته ووِ چه ځکه تاسو ته وايم چه دَ ۲۲
خپل ژوندانه دَپارَ انديښنه مه کوئِ چه څه به خورئِ او نه دَجُسي
دَپارَ چه څه به اغوندئِ ۲۳ ځکه چه ځان له خوراک نه بهتر دي ۲۳
او جُسه له پوشاک نه ۲۴ قارغانو ته غور وکړئِ چه نه کرِي او نه ريبي ۲۴
او نه کوټئ نه انبار لري نو هم الله روزِي ورکوِي پس تاسو له

۲۵ مرغانو نه څومره بهتر يئِ ۲۵ او له تاسو نه څوک دي چه خپل قد
۲۶ په فکر يوه هاته زيانولي شِي ۲۶ پس چه په وړوکي قادر نه يئِ نو
۲۷ ولي دَ نورو دَپارَ انديښنه کويِ ۲۷ سوسنو ته غور وکړيِ څرنگ لوئيږي
نه خواري کوي نه وريښي ليکن زه تاسو ته وايم چه سليمان هم
له خپل ټول شان سره له هغوي نه دَ يوه په شان اغوستي نه وُو
۲۸ ۲۸ پس چه الله دَ چمن په واښو چه نن شته او صبا په تناره کښ
غورزولي شِي دا رنگ اغوندوِي نو اي کم اعتقادو په تاسو به ئې
۲۹ څومره زيات واغوندوِي ۲۹ نو تاسو مه لټويِ چه څه به خوريِ يا څه
۳۰ به څښيِ او مه مذبذب کيږيِ ۳۰ ځکه چه دَ دنيا قومونه دا ټول
څيزونه لټوي ليکن ستاسو پلار پوهيږي چه تاسو دَ دي څيزونو محتاج
۳۱ يئِ ۳۱ ليکن تاسو دَ هغه بادشاهي لټويِ نو دا ټول څيزونه به
۳۲ در زيات کړي شِي ۳۲ اي وړوکي رمي مه ويريږه ځکه چه ستا دَ پلار
۳۳ دا خيرخواهي شوه چه تاسو ته بادشاهي درکړي ۳۳ هغه څه چه
لريِ خرڅ ئې کړيِ او صدقه ئې کړيِ او دَ خپل ځان دَپارَ داسي
کڅوړي جوړي کړيِ چه نه زړيږي خزانه چه په آسمانونو کښ چه نه
۳۴ کميږي چه هلته نه غل ور رسيږي او نه ئې کرړي خرابوي ۳۴ ځکه چه
کوم ځاي چه ستاسو خزانه وِي هلته کښ به ستاسو زړه هم وِي
۳۵ ۳۶ ۳۵ ستاسو ملا دِ تړلي او ډيوي دِ ستاسو بلي وِي ۳۶ او تاسو
دَ هغو سړو په شان اوسيِ چه دَ خپل خداوند لار کوري چه کله
به له واده نه بيرته راشِي او چه راشِي او وټکوي نو دستي ئې ورته
۳۷ پرانزي ۳۷ مبارک هغه غُلامان دِي چه خداوند راشِي او وينِ ئې بيامومي
زه تاسو ته رښتيا وايم چه دي به بخپله ملا وتړي او هغوي به په
۳۸ ډوډيِ کښينوِي او را به شِي دَ هغو خدمت به وکړي ۳۸ او که چري
هغه په دويم يا په دريم پهر راشِي او داسي ئې بيامومي نو هغه
۳۹ غُلامان مبارک دِي ۳۹ مگر په دي وپوهيږيِ که چري دَ کور خاوند

ته معلوم وي چه غل کوم وقت راځي نو بيدار به وه او خپل کور
ته به ئي پرېښي نه وه چه کنډر وکړي ۴۰ نو تاسو هم تيار اوسئ ځکه ۴۰
چه په هغه ساعت چه ستاسو گمان نه وي ابن آدم به راشي
۴۱ او پطرس ورِ اي خداونده دا مثال مونږ ته يا هم ټولو ته ۴۱
ئي وايي ۴۲ نو خداوند ورِيل هغه امانتدار او هوښيار مختار څوک ۴۲
دي چه خداوند ئي په خپل خاندان ودروي چه په وقت دَ هغو
دَ ډوډئ برخه ورکوي ۴۳ مبارک هغه نوکر دي چه خداوند ئي په ۴۳
راتلو کښ او دي داسي کار کونکي بياموي ۴۴ زه تاسو ته رښتيا وايم ۴۴
چه هغه به په ټول مال خپل باندِ ودروي ۴۵ او که هغه غلام په ۴۵
خپل زړه کښ ووايي چه خاوند مِ په راتلو کښ ډيل کوي او دَ مريونو
او دَ وينځو په وهلو او په خوړلو او څښلو او په مستئ کولو شروع وکړي
۴۶ نو دَ هغه نوکر خاوند به په هغه ورځ چه انتظارئ نه وي او په ۴۶
هغه ساعت چه نه پرِ پوهيږي راشي او دوه ټوټي به ئي کړي او
دَ ده برخه به له بي‌ايمانو سره مقرّره کړي ۴۷ او هغه غلام چه دَ خپل ۴۷
خاوند اراده ئي وپېژندله او تياري ئي و نه کړه او دَ هغه په ارادي ئي
عمل و نه کړ نو هغه به ډير ووهلي شي ۴۸ او هغه چه په ناپېژندلو ۴۸
کارونه لايق دَ کوړي وکړل په لږو سره به ووهلي شي ځکه چه
هر چا ته چه ډير ورکړي شـي ډير به ترِ وغوښتلي شي او هغه
چا ته چه ډير ورو سپارلي شي ډير به ورنه طلب کړي شي
۴۹ زه راغلي يم چه اور په زمکي باندِ واچوم او څه غواړم ۴۹
چه که اوس بل شوي وي ۵۰ ما لره يوه بپتسما ده چه ورنه بپتسمه ۵۰
کړي شم او څنگه په تنگئ کښ يم څو چه هغه پوره نه شي ۵۱ باري ۵۱
گمان کوئ چه زه په زمکه باندِ دَ صلحي ورکولو دَپارَ راغلي يم څه ؟
زه تاسو ته وايم چه نه بلکه دَ بيلتانه دَپارَ ۵۲ ځکه چه له اوس نه ۵۲
به په يوه کور کښ پنځه تنه سره جدا شي دري دَ دوو به خلاف او

۵۳ دوه دَدریو ۵۳ پلار به له ځویه او ځوي له پلار نه مور له لور
او لور له مورَ خواښي له خپلي نګورَ او نګور له خواښي نه به بیل کړي شي
۵۴ ۵۴ او ده خلقو ته دا هم وویل چه هر کله چه تاسو وویني
چه اوریځ له نمر پریواته نه راخیژي نو دستي وایئِ چه شیبه راځي او دا
۵۵ هسي وشي ۵۵ او چه تاسو وویني چه باد له سُهَیله الوزي نو وایئِ
۵۶ چه ګرم باد به شي او دا هسي وشي ۵۶ اي ریاکارانو دَ زمکي او دَ
آسمان دَ مخ په ازمایلو کښ هوښیار یئِ مګر څرنګ دَ دي زماني په
۵۷ ازمایلو نه پوهیږئِ ۵۷ او تاسو په خپله ولي په حق حکم نه کوئِ
۵۸ ۵۸ هر کله چه ته له خپل مدعي سره حاکم ته ځي په لاري کښ کوشش
وکړه چه ور نه خلاص شي هسي نه وِيَ چه هغه دِ قاضي ته راکاږي
او قاضي به دِ مستاجر ته وسپاري او مستاجر به دِ په بندیخاني کښ واچوي
۵۹ ۵۹ زه در ته وایم چه له هغه ځاي نه به تر هغه پوري بهر ونه وزي
څو چه آخره پیسا ادا نه کړي *

# دیارلسم باب

۱ ۱ په هغه مدي ځني حاضر وُو چه ده ته ئي دَ هغو جلیلیانو خبر ورکاوه چه
۲ پیلاطس ئي ویني دَ هغو له قربانو سره ګډي کړي وي ۲ ده دوي ته
په ځواب کښ وویل چه تاسو ګمان کوئِ چه دا جلیلیان له ټولو جلیلیانو
۳ نه زیات ګنهکار وُو څه ؟ چه دا دردونه ئي وزغمل ۳ زه تاسو ته وایم چه
۴ نه بلکه که تاسو توبه نه کړئِ ټول به دي شان به هلاک شئِ ۴ یا هغه
اتلس چه په سیلوام کښ برج ورباندِ پریوت او مړه ئي کړل دا ګمان
کوئِ چه دوي له ټولو اوسیدونکو سړیو دَ اورشلیمَ زیات خطاکار وُو څه ؟
۵ ۵ زه تاسو ته وایم چه نه بلکه تاسي که توبه نه کړئِ هم به دِ شان
به ټول هلاک شئِ
۶ ۶ او ده دا مثال ووایه چه یو سړي دَ انګورو په باغ کښ دَ
انځر ونه لګولي شوي لرله او هغه ورغي میوه ئي ولټوله او بیا ئي نه موندَه

۷ نو ده باغوان ته وويل چه گوره دري کاله کيږي چه زه راځم او دَ دِ
۸ اِنځر ميوه لټوم نه يُ مومم دا پريکړه ځله زمکه حبطه کوي ۸ هغه په
ځواب کښ ورته ووِ اي خداونده سَږ کال يُ هم پريږده چه زه يُ گير
۹ چاپير وکنم اوسَرَهٔ ورته واچوم ۹ کُنُدِ ميوه و نسِي اوکه نه نو پري به يُ کړي
۱۰ ۱۰ او ده دَ سبّت په ورځ په يوي عبادت‌خاني کښ تعليم ورکاوه
۱۱ ۱۱ او گوره يوه ښځه وه چه په دي کښ له اتلسو کالو نه دَ ناجوړتيا روح
۱۲ وه او کوبَۍ شوي وه او بيخي سميدلي نه شوه ۱۲ يسوع چه هغه وليده را و
ئ بلله ورته و يُ ويل اي ښځي ته له خپلي ناجوړتيا نه خلاصه شوي
۱۳ يي ۱۳ او لاسونه يُ پرِ کيښودل او سم دَ لاسه سمه شوه اوتمجيد دَالله
۱۴ يُ کوله ۱۴ نو دَ عبادت‌خاني سردار قهرژن شه ځکه چه يسوع دَ سبّت په
ورځ شفا ورو بخښله ځواب يُ ورکړ خلقو ته يُ ووِ چه شپږ ورځي دِي
چه په هغو کښ کار کول بايده دِي نو په دغو کښ راځئ او شفا بياموئ
۱۵ نه دَ سبّت په ورځ ۱۵ خداوند په ځواب کښ ورته وويل اي رياکارو
هر يو له تاسو نه دَ سبّت په ورځ خپل غويي ياخر له اخوَر نه پرانزي
۱۶ خه؟ چه اوبو ښښلو له يُ بوزي ۱۶ نو روا نه وه چه دا ښځه چه دَ ابراهام
لور ده چه گوره له اتلسو کالو نه شيطان بنده کري ده دَ سبّت په ورځ
۱۷ له قيد نه آزاده کړي شِي ۱۷ او چه ده دا وويل نو دَ ده مخالفان شرمنده
شول او ټول خلق له هغو جلالي کارونو نه چه له ده وکړي شول
خوشحالَ شول
۱۸ ۱۸ او ده وويل چه دَ الله بادشاهي دَ څه په شان ده او له څه
۱۹ سره يُ مشابه کړم ۱۹ دَ آوري دَ داني په شان ده چه يو سړي واخسته او
په خپل باغ کښ يُ وغورزوله او هغه وټوکيده او ونه شوه او دَ هغي
۲۰ په ښاخونو کښ دَ هوا مرغانو آرام وکړ ۲۰ بيا يُ وويل چه بادشاهي دَ
۲۱ الله له څه څيز سره مشابه کړم ۲۱ هغه دَ خميري سره مشابه ده چه
يوي ښځي واخِستله او له دري اوړيو اوړو سره يُ گډه کړله تر دي حده

چه ټول خمبيره شول
۲۲ ۲۲ او دي ښهر په ښهر او کلي په کلي تيريده او تعليم به ئي
۲۳ ورکاوه او اورشليم ته به ئي سفر کاوه ۲۳ او يوه ور ته ووِ اي خداوندَ
۲۴ لږ دِي چه نجات مومِي څه؟ ده هغو ته ووِ ۲۴ تاسو په دي پهلواني
کوئِ چه په تنګي دروازي ننوزئِ ځکه چه زه تاسو ته وايم چه ډير به دَ
۲۵ هغي دَ ننوتلو طلب کړِي مګر وس به ئي نه وِي ۲۵ هرکله چه دَ کورخاوند
پورته شه او دروازه ئي بنده کړه او تاسو په بهر ودريدلو او په دروازي
تکولو سر شئِ او وائِ ای خداونده مونږ ته ئي پرانزه او دي به په ځواب
۲۶ کښ در ته ووايِي چه زه مو نه پيژنم چه تاسو دَ کوم ځاي يئِ ۲۶ هغه
وقت به تاسو په ويلو شروع وکړئِ چه مونږ خو ستا په حضور خوړلي
۲۷ او څښلي دِي او تا څمونږ په پلنو لارو کښ تعليم راکاوه ۲۷ او دي
به ووايِي چه زه تاسو نه پيژنم چه دَکوم ځاي يئِ له ما نه لري شئِ
۲۸ اي ټولو بي انصافو کاريګرو ۲۸ هلته به ژړا او غاښ چيچل وِي هغه وقت
چه تاسو ابراهام او اسحاق او يعقوب او ټول نبيان دَ الله په بادشاهئِ
۲۹ کښ ووينئِ او خپل ځان باهرغورزولي ۲۹ او له نمرخاته او له نمر پريواته
او له شمالَ او له جنوبَ به راشي او دَ الله په بادشاهئِ کښ به کښيني
۳۰ ۳۰ او ګوره هغه ورستي دِي چه ورومبي به شي او هغه ورمبي دِي
چه ورستي به شي
۳۱ ۳۱ او هم هغه ساعت څو فريسيان راغلل ور ته و ئي ويل چه
ووځه او له دي ځاي نه لاړ شه ځکه چه هيروديس غواړي چه
۳۲ تا ووژني ۳۲ او ده ور ته ووِيل چه لاړ شئِ او هغي لومبړي ته ووائِ چه
ګوره زه ديوان وباسم او نن ورځ او صبا شفا پوره کوم او په دريمه ورځ
۳۳ به کامل کيږم ۳۳ مګر ما لره ضرور دِي چه نن او صبا او بله ورځ
وګرزم ځکه چه ممکنه نه ده چه نبي له اورشليمَ نه هلاک شي
۳۴ ۳۴ اي اورشليمَ اورشليمَ چه نبيان وژني او هغوي چه تا ته راستولي

شوِي دِي سنكساروي څو واره مِ وغوښتل چه ستا هلكان ټول كړمِ لكه چه
چركه خپل بچي تر خپلو وزرو لاندِ يو ځاي كوِي ليكن تاسو و نه غوښتل ۳۵ گوره ۳۵
ستاسو كور ستاسو دپارَ پرېښوي شِي او زه تاسو ته وايم چه ما به تر هغي پوري و
نه وينيِ چه و به وايئِ مبارك هغه دي چه دَ خداوند په نوم سره راځِي ÷

## څوارلسم باب

۱ او داسي وشول چه دي دَ سبّت په ورځ دَ يوه سردار فريسي كره دَ ۱
ډوډيِ خوړلو دپارَ ورغي او هغوي ورته په څوكښ وُو ۲ او گوره يو ۲
سړي چه جولي وهلي وه دَده دَ وړاندِ وه ۳ او يسوع ځواب وركړ معلّمانو ۳
دَ شرعي او فريسيانو ته ئي وويل چه دَ سبّت په ورځ شفا وركول روا
دي كه نه ۴ مگر دوي چپ شول نو ده هغه ونيو او جوړ ئي كړ او ۴
پړي ئي ښود ۵ او ده هغوي ته وويل چه له تاسو نه چه دَ چا غويي يا خر ۵
په كوهِي كښ پريوزي نو دَ سبّت په ورځ به ئي دستِي را و نه كاږيِ څه؟
۶ او هغوي ده ته دَ دي خبرو ځواب وركولي نه شُه ۶
۷ او بللي شويو ته ئي يو مثال ووايه چه ئي وليدل چه څرنگ ۷
اولَ كرسيِ غوره كويِ نو وئي ويل ۸ هر كله چه څوك دِ واده ته وبولِي ۸
نو دَ مجلس په اوّلَ كرسيِ مه كښينه هسي نه چه څوك له تا نه
عزّت ناك بللي شوي وِي ۹ او هغه چه ته او هغه ئي بللِي يئِ ۹
راشي او تا ته ووايِي چه ده ته ځاي وركړه نو ته په شرمندگيِ سره
دَ لاندِ ځاي په اخستلو به سر شي ۱۰ بلكه هر كله چه ته وباله شي ۱۰
نو لاړ شه له ټولو نه په لاندِ ځاي كښ كښينه تا چه هغه سړي
چه ته ئي بللي يي راشِي او درته ووايِي اي دوسته پاس كښينه نو به دِ
دَ هغو دَ وړاندِ چه تا سره ناست دِي عزّت وِي ۱۱ ځكه هر څوك چه ۱۱
خپل ځان سرفراز كوِي ذليل به كړي شِي او هر هغه څوك چه خپل ځان
ذليل كړِي سرفراز به كړي شِي
۱۲ او هغه ته هم چه دي ئي بللي وه و ئي ويل هر كله چه ته ۱۲

دَ سحر سیلمستیا یا دَ نماښام طیاروي نو خپل دوستان یا خپل
ورونړه یا خپلوان یا دولتمند ګاونډیان مه رابوله هسي نه وِي چه هغوي
۱۳ دِ هم طلب کړي او بدله درکړي شِي ۱۳ بلکه هر کله چه ته میلمستیا
۱۴ وکړي مسکینان شلان ګډان ړانده را وه‌بوله ۱۴ او ته به مبارک شي
ځکه چه هغوي تا ته عوض درکولي نه شِي مګر تا ته به دَ صادقانو په
قیامت کښں بدله درکړي شِي
۱۵ ۱۵ او یوه له هغو نه چه ورسره ناست وُو دا خبره واوریده
ورته و ئې ویل مبارک هغه دي چه دَ الله په بادشاهئِ کښں به ډوډئِ
۱۶ وخورِي ۱۶ او ده هغه ته وویل چه یوه سړِي دَ نماښام لویه میلمستیا
۱۷ وکړه او ډیر ئې وبلِل ۱۷ او دَ میلمستیا په وقت ئې خپل نوکران واستول
۱۸ چه بللي شوِي خبر کړِي چه راځِي ځکه چه اوس هر څه طیار دِي ۱۸ او
ټولو په اتفاق سره عذرکول شروع کړل ورنبِي ورته ووِ چه پټئَ مِ په
بیعه اخستئَ دئَ او ضرور دِي چه ورشم او و ئې ویئم زه تا ته سوال
۱۹ کوم چه معاف مِ کړه ۱۹ بل وویل چه پنځه جوړي غویان مِ په بیعه
اخستِي دِي اوځم چه و ئې آزمایم زه تا ته سوال کوم چه معاف مِ
۲۰-۲۱ کړه ۲۰ بل ووِ چه ما ښځه کړي ده له دِ سببَ درتلي نه شم ۲۱ نو هغه غلام راغي
خپل خاوند ئې په دي خبرو خبر کړ هغه وقت دَ کور خاوند په قهر شه
او خپل غلام ته ئې وویل چه زر زر دَ ښهر پلنو لارو او کوڅو ته ووزه
۲۲ او مسکینان او شلان ړانده او ګډان دلته را ننه‌باسه ۲۲ او غلام وویل
۲۳ اي خاونده لکه چه تا حکم وکړ هسي وشول نو هم ځاي شته ۲۳ خداوند
غلام ته ووِ چه لارو او باندو ته ووزه او په زور سره خلق را ننه‌باسه
۲۴ چه کور مِ ډک شِي ۲۴ ځکه چه زه تاسو ته وایم چه له هغو سړو نه چه
بللِي شوِي دِي هیڅوک به ځما میلمستیا و نه څکي
۲۵ ۲۵ او له ده سره ډیر خلق تلل او هغوي ته ئې مخ ورو‌کړزاوه
۲۶ و ئې ویل ۲۶ چه که څوک ما ته راشِي او له خپل پلارَ او له مورَ او له

ښځي او له هلکانو او له وروڼو او خوېندو بلکه له خپل ځان سره هم
۲۷ کينه و نه کړي هغه ځما شاګرد کېدلي نه شي ۲۷ هر څوک چه خپل
صليب پورته نه کړي او په ما پسې را نه شي هغه ځما شاګرد کېدلي نه شي
۲۸ ۲۸ ځکه چه له تاسي نه څوک دي چه اراده دَ برج جوړولو لري او کښېني نه
۲۹ خرڅ و نه شميري چه هغه پوره کولي شي که نه ۲۹ هسي نه وي چه
بنياد يي کېږدي او په پوره کولو يْ وَس نه لري او ټول ليدونکي ور پوري
۳۰ په ټوقو سر شي ۳۰ او ووايي چه دي سړي په جوړولو شروع وکړه او په
۳۱ پوره کولو يْ طاقت نه لاره ۳۱ ياکوم بادشاه چه بل بادشاه ته دَ جنګيدلو
دَپارَ ورځي وړمبی نه کښېني او فکر نه کوي چه زه په لسو زرو له هغه
۳۲ سره چه له شلو زرو سره رابانډ راځي مقابله کولي شم يا نه ۳۲ او که
نه چه هغه لا لري دي پيغام به ورواستوي او شرطونه دَ صلحي به تر
۳۳ وغواړي ۳۳ نو په دي شان سره هر يو چه له تاسو نه خپل ټول مال
۳۴ ترک نه کړي ځما شاګرد کيدلي نه شي ۳۴ مالګه ښه ده مګر که مالګه
۳۵ بي خونده شي نو په څه شي سره به خوندناکه شي ۳۵ نه دَ زمکي او نه دَ
ډيران دَپارَ لايقه ده بهر يْ غورزوي څوک چه دَ اوريدلو غوږونَ لري
وا دِ وري ✠

# پنځلسم باب

۱ ۱ او ټول قلنګ اخستونکي او ګنهګاران ده ته نژدي راتله چه دَ ده
۲ واوري ۲ او فريسيان او کاتبان سره وګونږيدل او و يْ ويل چه دي
ګنهګاران قبلوي او دوديْ ور سره خوري
۳ ۳ نو ده هغوي ته دا مثال ووايه ۴ و يْ ويل چه کوم سړي دي له
۴ تاسو نه چه سل ګډوري لري او يو له هغونه ورک شي هغه نه نوي به په بيابان کښ پري
۵ نږدي او په هغه ورک شوي پسي به و نه ګرځي خو چه بيا يْ مومي ۵ او
۶ چه بيا يْ مومي نو په خوشحاليِ سره يْ په خپلو اوږو کيږدي ۶ او چه کور
ته ورشي نو دوستان او ګاونډيان را وبولي. او ور ته ووايي چه له ما سره

۷ خوشحالي وکړئ ځکه چه ما خپل ورک شوي ګډوري بیاموند ۷ زه تاسي
ته وایم چه په دي شان سره به په آسمان کښ په یوه ګنهګار بانديِ
چه توبه کوِي له نه‌نوِي صادقانو نه چه دَ توبه‌کاريِ حاجت نه لري
خوشحالي وِي
۸ ۸ یا کومه ښځه چه لس دراهم لرِي او یو ورک کړِي ډیوه نه بلوي
او کور نه جارو کوي او تر هغه پوري چه نه ئي موِمي په کوشش سره
۹ ئي نه لټوِي څه ؟ ۹ او چه هغه وموِمي نو دوستاني او ګاونډیاني راوبولي
او ورته وايي چه ما سره خوشحالي وکړئ ځکه چه ما هغه خپل ورک
۱۰ کړي درهم بیاموند ۱۰ زه تاسو ته وایم چه په دي شان به دَ الله دَ
فرښتو دَ وړاندِ په یوه ګنهګار باندِ چه توبه کوِي خوشحالي وِي
۱۱ ۱۲ ۱۱ او ده ووِ چه دَ یوه سړِي دوه ځامن وُو ۱۲ له هغو نه کشَرِي
پلار ته وویل اي پلاره هغه برخه ستا دَ مال چه ځما رسِي را ئي کړه
۱۳ نو ده په هغو دوارو باندِ خپله ګذاره وویشله ۱۳ او پس له څو ورځو
کشر خوي هر څه سره جمع کړل یوه لري ملک ته په سفر روان شه او
۱۴ هلته ئي په بدخرڅيِ سره خپل مال والوزاوه ۱۴ او هر کله چه ټول ئي
۱۵ خرڅ کړ نو په هغه ملک لوي قحط شه او دي په محتاجِي‌سر شه ۱۵ نو لاړ شه
او دَ هغه ملک له یوه ښهرِي سره شه او هغه خپلو پټو ته دَ خنزیرانو
۱۶ دَ څرولو دَپارَ واستاوه ۱۶ او دَده آرزو وه چه له هغو پوستکو چه
۱۷ خنزیرانو خوړل خپل ځان موړ کړِي مګر هیچا نه ورکول ۱۷ چه په ځان
کښ راغي و ئي ویل چه ځما دَ پلار څومره مزدوران دِي چه ډوډيِ ورنه
۱۸ زیاتیږي او زه دلته له لوږي هلاکیږم ۱۸ زه به پورته شم خپل پلار ته به ورشم
او ورته به ووایم چه اي پلاره ما دَ آسمان او ستا په مخ کښ خطا کړي
۱۹ ده ۱۹ زه دَدي لایق نه یم چه ستا ځوي وبللي شم ما په شان دَ یو له
۲۰ خپلو مزدورانو کړه ۲۰ پورته شه خپل پلار ته ورغي او چه لا لري وه پلار ئي
دي ولید او زړه سوي ئي پرِ وکړ ورودو ئي کړ ورتو غاړه وت اوکښل ئي کړ

٢١ ځوی ورته ووېل اي پلاره ما دَ آسمان او ستا په مخ خطا کړي ده ٢١
نو زه هيڅ لايق نه يم چه ستا ځوي وبللي شم ٢٢ مگر پلار يُ خپلو سريونو ٢٢
ته ووېل چه زر له تولو ښه پوشاک راوباسئ او ده ته يُ واغوندوئ
او گوته ور په لاس اوځپلئ ور په پښو کړئ ٢٣ او ځورب سخي راولئ ٢٣
حلال يُ کړئ چه وئي خورو او خوښي وکړو ٢٤ ځکه چه دا ځوي م مړ وه ٢٤
او بيا ژوندي شه ورک وه او بيا موندلي شه نو په خوښئ کولو سرشول
٢٥ او دَ هغه مشر ځويي په پټي کښ وه چه راغي او کورته نژدي شه ٢٥
سرود او درزهار يُ واورېدل ٢٦ نو يو له نوکرانو نه يُ راوباله پوښتنه ٢٦
يُ تري وکړه چه دا څه دي ٢٧ هغه ورته ووې چه دا ستا ورور راغلي دي ٢٧
او ستا پلار ځورب سخي حلال کړي دي ځکه چه روغ جوړ يُ موندلي دي
٢٨ نو دي په قهر شه دائي ونه غوښته چه دننه ورشي نو پلار يُ ٢٨
بهر ور ووت دلاسه کاوه يُ ٢٩ او هغه په ځواب کښ خپل پلار ته ٢٩
ووېل چه گوره زه دومره کاله ستا خدمت کوم او هيچري ستا له حکمه
غړېدلي نه يم او تا ما ته هيچري يو ورغومي راکړي نه دي چه له خپلو
يارانو سره خوښي وکړم ٣٠ او چه دا ځوي دِ راغلي دي چه ستا گذاره ٣٠
يُ له کنچنيو سره خوړلي ده ځورب سخي دِ دَده دَپاره حلال کړ ٣١ ده ور ٣١
ته ووېل اي هلکَ ته تل له ما سره يي او ټول څه چه څما دي ستا دِي
٣٢ نو خوښي او ښادي کول لازم دِي ځکه چه دا ستا ورور مړ وه بيا ٣٢
ژوندي شه ورک وه او بيا موند شه ٭

# شپاړسم باب

١ او ده خپلو شاگردانو ته دا هم ووې چه دَ يوه دولتمند سړي يو مختار ١
وه او خلقو دَ هغه په حق کښ ورته گله وکړه چه ستا مال الوزوي
٢ نو هغه يُ وباله ورته وئي ويل چه دا څه دي چه زه يُ ستا په ٢
حق کښ اورم دَ خپلي مختارئ حساب راکړه ځکه چه ته بيا مختار پاتي کېدلي
نه شي ٣ نو مختار له خپل ځان سره ووې چه څه وکړم چه خاوند څما ٣

۴ مختارِي را نه اخلي دَ كنودلو قوّت نه لرم او په گدائي كولو شرميږم ۴ راته
معلومه شوه چه څه وكړم هغه وقت چه له مختارئِ نه وويستلي شم
۵ بيا خلق په خپلو كورونو كښې منظور كړي ۵ نو هريو پوروړي دَ خپل خاوند
ئي راوباله ورنبي ته ئي ووِ چه څما دَ خاوند په تا باندِ څومره پور دي
۶ ۶ هغه ووِ چه سل اوربي تيل ده ورته ووِ چه خپل تمسّك راواخله او
۷ كښينه په تلوار سره پنځوس وليكه ۷ او بل ته ئي وويل چه ته څومره قرضدار
يي هغه ووِ دَ سل اوربو غنمو ورته ئي وويل خپل تمسّك راواخله او
۸ اتيا وليكه ۸ نو خاوند په هغه بيانصاف مختار شاباسي وكړ څكه چه ده
كار په هوښيارئِ وكړ څكه چه فرزندان دَدي دنيا په خپلي پيړئِ كښې دَ
۹ نور له څامنو نه هوښيار دِي ۹ او زه تاسو ته وايم چه په وسيله دَ دولت
دَ بيانصافئِ دَ خپلو څانونو دَپارَ دوستان پيدا كړئِ دَدي دَپارَ هركله چه
۱۰ هغه ورك شِي نو به هغوي تاسو په ابدِي كوړيو كښې قبول كړِي ۱۰ هغه
څوك چه په لږ كښې امانتدار دي په ډيرو كښې هم امانتدار دي او هغه
۱۱ څوك چه په لږ كښې بيانصافه دي په ډيرو كښې هم بيانصاف دي ۱۱ نو چه
تاسو دَ بيانصافي په دولت كښې امانتدار نه شوئِ نو څوك به مو په رښتيني
۱۲ امانتدار كړئِ ۱۲ او چه تاسو په پردِي مال كښې امانتداران نه شوئِ نو هغه
۱۳ چه ستاسو خپل دي څوك به ئي دركړِي ۱۳ هيڅ نوكر دَ دوو خاوندانو خدمت
كولي نه شِي ياخو به له يوه سره دشمني وكړي او له بل سره مينه وكړي
ياخو به له يوه سره لګيا شِي او بل به سپك وشميري پس تاسو دَ الله
او دَ دولت خدمت كولي نه شئِ
۱۴ ۱۴ او فريسيان چه زردوست وُو دا ئي واوريدل او په ده پوري
۱۵ ئي توقي كولي ۱۵ نو ورته ئي وويل چه تاسو هغه يئِ چه دَ سړي دَ وړاندِ
دَ خپلو څانونو صدق ثابتَوئِ ليكن الله ستاسو په زړونو پوهيږي ولي
هغه څه چه دَ سړيو په مخ كښې لوي دِي دَ الله دَ وړاندِ مكروه دِي
۱۶ ۱۶ تورات او انبيا تر يوحنّا پوري وُو له هغه وقتَ دَ الله دَ بادشاهئِ

زيري دانجيل کيږي او هريو په جبر سره په دي کښ ننوزي ١٧ او دَ آسمان ١٧
او دَ زمکي لري کيدل آسان دِي له دي نه چه يو ټکي له توريت نه
پريوزي ١٨ هر څوک چه خپله ښځه پريږدي او بله په نکاح کړي هغه زنا ١٨
کوِي او هغه څوک چه دَ ميړه له طلاقي کړي سره نکاح وکړي زنا کوِي
١٩ يو دولتمند سړي وه چه ارغواني او کتاني جامي به ئي اغوستلي ١٩
او ورځ په ورځ به ئي په ښو لذتونو سره مزي کولي ٢٠ او لعاذر نومي يو ٢٠
خوار وه چه ناسوري وه دَ ده دروازي ته پروت وه ٢١ او دَ ده آرزو ٢١
وه چه هغه ټکړي چه دَ دولتمند له خوانچي نه پريوتلي وخوري بلکه سپي
هم راتله دَ ده ناسور به ئي څاټه ٢٢ او داسي وشول چه هغه خوار مړ ٢٢
شه او فرښتو دَ ابراهام غيږي ته وروړ او هغه دولتمند هم مړ شه
او خښ کړي شه ٢٣ او په جهنّم کښ چه دي په عذاب مبتلا وه خپلي ٢٣
سترګي ئي پورته کړي ابراهام ئي له لري وليد او لعاذر ئي په غيږ کښ ٢٤ او ٢٤
آواز ئي وکړ و ئي ويل اي پلارَ ابراهامَ په ما باندِ رحم وکړه او لعاذر
را واستوه چه دَ خپلي ګوتي سر په اوبو لوند کړي او ژبه مِ يخه کړي ځکه
چه زه په دي لمبي کښ عذابيږم ٢٥ مګر ابراهام ووِيل اي ځويه په ٢٥
يادکړه چه تا په خپل ژوند کښ ښه څيزونه واخستل او لعاذر هم دغه
شان بد څيزونه مګر اوس دي دلي تسلّي مومي او ته عذابيږي ٢٦
او سره له دي ټولو څمونږ او ستا په مينځ کښ يوه لويه کنده مقرره ٢٦
کړي شوي ده داسي چه هغوي چه له دي ځايَ ناسو ته پوري وتل غواړي
نه توانيږي او نه هغوي چه هلته دِي مونږ ته را پوري وتلي شِي ٢٧ نو ٢٧
هغه ووِيل اي پلاره زه تا ته سوال کوم چه دغه څما دَ پلار کره واستوه
٢٨ ځکه چه څما پنځه ورونړه دِي چه هغوي ته شاهدي ولي هسي نه چه ٢٨
هغوي هم دَدي عذاب په ځاي کښ واشِي ٢٩ ابراهام ووِي چه هغو څخه ٢٩
موسيٰ او انبيا دِي له هغوي دي واورِي ٣٠ و ئي ويل چه نه اي پلارَ ابراهامَ ٣٠
بلکه که څوک له مړو نه دوي ته ورشي نو توبه به وکړي ٣١ او ورته و ئي ويل ٣١

کہ دَ موسیٰ او دَ انبیاؤ وا نہ وري نو کہ لہ مړو نہ څوک پاڅي وبہ يې نہ مني +

## اولسم باب

۱ آ او خپلو شاګردانو تہ يې ووِ چہ دا امکان نہ لرِي چہ دَ تِندک سببونہ
۲ را نہ شِي سکر هيُ پہ هغہ باندِ چہ دَ هغہ پہ سببَ بہ راشِي ۲ کہ دَ
ژرندي پل دَ هغہ پہ غاړي کښ څوړند شِي او پہ درياب کښ وغورزاوه
شِي دا ولہ لہ هغي نہ ښہ دہ چہ يوه لہ دغو ووړوکيو نہ تِندک ورکړِي
۳ ۳ پہ خپلو ځانونو خبردار شيِ کہ ستا ورور ګناه وکړِي وئ ترټہ او کہ
۴ چري توبہ وکړِي نو وئ بخښہ ۴ او کہ پہ ورځ کښ اووه ځلہ ستا خطا
وکړِي اووه واره درو ګرزِي ووايِي چہ توبہ کوم و يې بخښہ
۶-۵ ۵ نو رسولانو خداوند تہ وويل چہ زمونږ ايمان زيات کړه ۶ خداوند
ووِ چہ کہ تاسو دَ اوړِي دَ داني پہ قدر ايمان لرلي نو کہ دَدي توت وني
تہ مو ويلي چہ لہ بيخَ ووزه او پہ درياب کښ ولګيږه نو ستاسو بہ يې
۷ سنل ۷ او لہ تاسو نہ څوک شتہ چہ يو مريي يې وِي يويہ يا څرول
کوِي او چہ لہ پټِي نہ راشِي او دي بہ ور تہ ووايِي چہ زر راشہ پہ
۸ ډوډيِ کښينہ ۸ بلکہ ور تہ بہ و نہ وايِي څہ ؟ چہ څہ راتہ تيار کړه
او تړ هغہ پوري چہ زه خورم او څښم ملا وتړه خدمت مِ کوه پس لہ هغہ
تہ وخوره او وڅښہ ۹ نو دَ هغہ مريي احسان مني څہ ؟ چہ هغہ کار
۱۰ چہ پرِ حکم شوي وه و يې کړ ۱۰ پہ دي شان سره تاسو هم چہ هغہ
ټول څيزونہ چہ در تہ حکم پرِ شوي دي کړِي مو دِي نو ووايِئ چہ مونږ
نالايق مريونہ يو هغہ چہ پہ مونږ يې کول لازم وُو و مو کړل
۱۱ ۱۱ او چہ دي اورشليم تہ تہ نو داسي وشول چہ دَ سمرون او دَ
۱۲ جليل پہ مينځ کښ تيريده ۱۲ او چہ يوه کلِي تہ ورننوت نو لس تنہ کوړيان
۱۳ پرِ پيښ شول چہ لرِ ورتہ ولاړ وُو ۱۳ او پہ نارو سره يې ور تہ وويل اي
۱۴ يسوع خاوندَ مونږ باندِ رحم وکړه ۱۴ او چہ ده وليدل نو ور تہ وئ ويل
چہ لاړ شئ خپل ځانونہ کوهينانو تہ ښکاره کړئ او داسي وشول چہ دوِي

ورتلل نو پاک شول ۱۵ او یو له هغو نه چه وئ لیدل چه جوړ شه ۱۵
نو را وګرزیده او په لوړ آواز سره ئې تمجید دَ الله وکړه ۱۶ او هغه دَ ده ۱۶
په پښو پړمخ پریوت او دَده شکر ئې وکړ او دغه سامري وه ۱۷ او یسوع ۱۷
په ځواب کښ ور ته وویل چه لَس وارهٔ پاک نه شول څه؟ نو بیا هغه
نَه چرته دِي ۱۸ بې له دي بیګانه نه هیڅوک مونده نه شي چه راګرزیدلي ۱۸
وي او تمجید دَ الله ئې کړي وي ۱۹ نو ده هغه ته ووِ چه پاسه لاړ شه ۱۹
ته خپل ایمان خلاص کړي

۲۰ او هر کله چه فریسیانو له ده نه پوښتنه وکړه چه دَ الله ۲۰
بادشاهي به کله راشي ده هغوي نه په ځواب کښ ووِ چه دَ الله بادشاهي
په نګاه نه راځي ۲۱ او نه به وواېي ګوره دلته یا هلته ځکه ګوره دَ الله ۲۱
بادشاهي په ستاسو کښ دننه ده

۲۲ او شاګردانو ته ئې وویل چه ورځي به راشي چه تاسو به ۲۲
مشتاق شئ چه دَ ابن آدم له ورځو یوه ووینئ او نه به ئې وینئ ۲۳ او ۲۳
تاسو ته به وواېي ګوره دلته یا هلته نو تاسو مه ورځئ او ورپسي مه
شئ ۲۴ ځکه لکه برېښنا چه له یوي خوا دَ آسمان دَ لاندِ تر بلي خوا دَ ۲۴
آسمان دَ لاندِ وځلیږي هم هسي به ابن آدم په خپلو ورځو کښ وِي
۲۵ لیکن ورُمبي دا بویه چه ډیر څه وزغمي او له دي پیړئ نه رد کړي ۲۵
شِي ۲۶ او لکه چه دَ نوح په ورځو کښ وشول هم هسي به دَ ابنِ آدم ۲۶
په ورځو کښ وشي ۲۷ (چه خلقو) خوړل او څښل ودونه ئې کول ودیدلي ۲۷
تر هغي ورځي پوري چه نوح په بیړئ کښ ننوت او طوفان راغي او ټول
ئې هلاک کړل ۲۸ او لکه چه دَ لوط په ورځو کښ وشول (چه ئې) خوړل څښل ۲۸
پیرودل خرڅول کرل کورونه جوړول ۲۹ لیکن هغه ورځ چه لوط له سدوم ۲۹
نه بهر ووت اور او ګوګړ له آسمانَ راووریدل او ټول ئې هلاک کړل ۳۰ ۳۰
هم په دي شان به په هغه ورځ وِي چه دَ ابنِ آدم کښف وشي ۳۱ په هغي ۳۱
ورځ چه څوک په بام باندِ وِي او اسباب ئې په کور کښ دَ هغه دَ اخستلو

دَ پارَ دِ نه ورکوزیږي او هغه څوک چه په پټي کښ وِي هم هسي دِ
٣٢ ٣٣ پستنه نه گرزِي ٣٢ دَ لوط ښځه یاده کړئِ ٣٣ هر څوک چه دَ خپل ځان
دَ کتهلو تلاش کړِي ورک به ئي کړِي او هر څوک چه ئي ورک کړِي ژوندي
٣٤ به ئي وساتِي ٣٤ زه تاسي ته وایم چه په هغي شپي کښ به دوه تنه
٣٥ په یوه کټ باندِ وِي یو به ونیو شِي او بل به پرېښود شِي ٣٥ دوه ښځي
٣٦ به سره مېچن کوِي یوه به ونیوي شِي او بله به پرېښوي شِي ٣٦ هغوي
په ځواب کښ وویل چرته اي خداونده ده ور ته ووِ هغه ځاي چه مردار
وِي هلته کښ به گرگسان راټول ښي ✣

# اته لسم باب

١ ١ او ور ته ئي مثال هم ووایه په دي چه لازم دِي چه مدام دِ دعا
٢ کوِي او ستړِي ستومانه دِ نه شِي ٢ او ده ووِ چه په یو ښهر کښ یو قاضِي
٣ وه چه نه له الله وېرېده او نه ئي دَ انسان پروا لرله ٣ او په
هغه ښهر کښ یوه کُنډه وه چه ده ته به راتله او ورته به ئي ویل
٤ چه ځما له مدعِي نه ځما انصاف وکړه ٤ او ده څو مده و نه غوښت
لیکن وروستو ئي په خپل زړه کښ وویل هر څو که زه له الله نه
٥ وېرېږم او دَ انسان پروا نه لرم ٥ مگر له دي سببَ چه دا کُنډه ربړ
راکوِي دَ دي انصاف به وکړم هسي نه چه دا تل ترتله راشِي و م
٦ ٧ ځبِي ٦ خداوند وویل واورئِ چه دا بي‌انصاف قاضِي څه وایِي ٧ نو
به الله دَ خپلو غوره کړیو چه شپه او ورځ دَ ده په لوړي فریاد کوِي
٨ انصاف و نه کړِي څه ؟ او هغه به په دوي زغم وکړِي ٨ زه تاسو ته
وایم چه دَ دوي انصاف به په جلتئِ سره وکړِي مگر ابنِ آدم چه راشِي
آیا په زمکه باندِ به ایمان بیاموِي څه ؟
٩ ٩ او ده یو څو تنو ته چه په خپل ځان باندِ ئي اعتماد کاوه چه
١٠ مونږ صادقان یو او نور به ئي سپک گڼړل دا مثال ئي ووایه ١٠ چه دوه سړي

هیکل ته دَ نمانځه دَپارَ ورختل یو فریسي بل قلنګ اخستونکي ۱۱ فریسي ۱۱
ودریده دَخپل ځان سره ئې داسي دعا کوله چه اي الله زه ستا شکر
کوم چه دَ نورو سړیو په ځیر نه یم ظالم بي انصافه او زناکار او یا دَدي
قلنګ اخستونکي په شان ۱۲ په هفته کښ زه دوه ځله روژه نیسم زه دَ ۱۲
ټول مال عُشر ورکوم ۱۳ او قلنګ اخستونکي هم لري ولاړ وه دومره ئې ۱۳
هم نه غوښته چه سترګي دَ آسمان په لوري پورته کړي مګر خپله سینه
ئې وهله ویل ئې اي اللهَ ما ګنهګار دَپارَ کفاره قبوله کړه ۱۴ زه تاسي ۱۴
ته وایم چه دغه سړي له هغه بل نه صادق شمیرلي شوي خپل کور ته
لاړ ځکه هغه څوک چه خپل ځان سرفراز کوي ذلیل به کړي شي او
چه خپل ځان ذلیل کوي سرفراز به کړي شي

۱۵ او هغوي خپل بچي هم ده ته راوړل چه ده ئې مسه کړي مګر ۱۵
چه شاګردانو ئې ولیدل هغوي ورټل ۱۶ لیکن یسوع هغوي را وبلل ورته ۱۶
وئې ویل چه هلکان راپرېږدئ چه ما ته راشي او مه ئې منع کوئ
ځکه چه بادشاهي دَ الله دَ داسي ده ۱۷ زه تاسو ته رښتیا وایم هرڅوک ۱۷
چه بادشاهي دَ الله دَ وړوکي هلک په شان قبوله نه کړي هیڅري به
په هغه کښ دننه نه ووځي

۱۸ او یوه سردار له ده نه پوښتنه وکړه چه اي نیکَ استاذه ۱۸
زه څه وکړم چه دَ ابدي ژوندانه وارث شم ۱۹ یسوع ورته وویل چه ۱۹
ما ته ولي نیک وایي هیڅوک نیک نشته مګر یَو یعني الله ۲۰ ته په ۲۰
حکمونو پوهیږي چه زنا مه کوه خون مه کوه غلا مه کوه په دروغه شاهدي
مه له دَخپل پلار او مور عزّت کوه ۲۱ او هغه ووِ چه ما دا ټول ۲۱
ځیزونه له خپل ځوانئ نه ساتلي دي ۲۲ نو یسوع چه دا واوریدل ور ۲۲
ته وئې ویل چه یو شي تا ته پاتي دي هر څه چه لري خرڅ ئې کړه او په
محتاجانو ئې ووېشه نو ستا دَپارَ به په آسمانونو کښ خزانه وي او راشه
راپسي شه ۲۳ مګر هغه چه دا واوریدل نو ډیر غمجن شه ځکه چه ۲۳

۲۴ لوي دولتمند وه ۲۴ او چه يسوع هغه وليد و ئې ويل چه مالداران به
۲۵ په څومره مشکله سره په بادشاهي دَ الله کښ ننوزي ۲۵ زيات آسان دِي
چه اوښ دَ ستني په سوم کښ ننوزي له دي نه چه دنيادار دَ الله په بادشاهي
۲۶ کښ ننوزي ۲۶ او هغو چه واوريدل و ئې ويل چه بيا څوک نجات
۲۷ موندلي شي ۲۷ او ده ووِ هغه څه چه دَ سړيو په نزد ممکن نه دِي دَ
۲۸ الله په نزد ممکن دِي ۲۸ نو پطرس ووِ کوره مونږ هرڅه خپل ترک کړل
۲۹ او په تا پسي شولو ۲۹ ده هغوي ته ووِ زه تاسو ته رښتيا وايم چه هيڅوک
نشته چه هغه کور يا ښځه يا ورونړه يامور پلار يا اولاد دَ الله دَ
۳۰ بادشاهيِ دَپارَ ترک کړي دِي ۳۰ چه په دي زماني کښ به څوچنده وا نه خلي
او پسه راتلونکي جهان کښ به ابدِي ژوندون
۳۱ ۳۱ او ده هغه دولس تنه له ځان سره واخستل ور ته وئې ويل
چه کورئِ اورشليم ته خيژو او چه هغه ټول څه چه دَ ابنِ آدم په حق
۳۲ کښ دِ انبياؤ په وسيله ليکلِي شوي دِي پوره به شي ۳۲ ځکه چه دي
به غير قومونو ته وسپارلي شي او ټوقي به ورپوري وکړي شي او ظلم
۳۳ به پرِ وکړي شي او ورباندِ به وتوکلي شي ۳۳ او په کورړو به ئې ووهي
۳۴ او و به ئې وژني او په دريمه ورځ به پورته شي ۳۴ او هغوي په دي
خبرو هيڅ نه پوهيدل او دا خبره ور نه پټه شوي وه او هغه څه چه
وويل شول معلوم ئې نه کړل
۳۵ ۳۵ او داسي وشول چه اريحا ته ورنزدي شه په لاري کښ يو ړوند
۳۶ ناست وه چه درويزه ئې کوله ۳۶ او چه ده واوريدل چه ټولي تيريږي
۳۷ پوښتنه ئې وکړه چه دا څه دِي ۳۷ او هغوي خبر کړ چه يسوع نصرانِي
۳۸ تيريږي ۳۸ نو هغه په نارو سره وئِويل چه اي يسوع دَ داؤد زويه په
۳۹ ما رحم وکړه ۳۹ او هغوي چه دَ وړاندِ ئې تلل و ئې ترټه چه چپ
شِي مگر هغه زياتي ناري وکړي چه اي دَ داؤد څويه په ما رحم وکړه
۴۰ ۴۰ نو يسوع ودريده او حکم ئې وکړ چه راوستلي دِ شي چه نزدي ورغي

پوښتنه ئې ور نه وکړه ۴۱ چه څه غواړې چه زه ئې در سره وکړم هغه ۴۱
ووِ اې خداونده دا چه بینا شم ۴۲ او یسوع ور ته ووِ بینا شه ته ۴۲
خپل ایمان خلاص کړې یې ۴۳ نو هغه دستې بینا شه او تمجید دَ الله ۴۳
وېونکې ورپسې ته او ټولو خلقو چه ولید حمد دَ الله ئې ووایه ❊

## نولسم باب

۱ او دې په اریحا کښې ننوت او په کښې تیریده ۲ نو گوره یو زکّا نومې ۱-۲
سړې چه سردار دَ قلنگ اخستونکو وه او دولتمند وه ۳ تلاش ئې کاوه ۳
چه یسوع ووینې چه څوک دې مگر دَ ټولې په سبب ئې لیدلې نه شه
ځکه چه مندرې وه ۴ نو په وړاندِ ئې دوکړ په یو اِنځر باندِ وخوت ۴
چه دې ووینې ځکه چه دې په هغې لارې تیریدونکې وه ۵ او چه ۵
یسوع هغه ځاې ته ورغې پورته ئې وکتل ور ته و ئې
ویل اې زکّا زر راکوز شه ځکه چه بایده دِې چه نن تا کره پاتې شم
۶ نو ور کوز شه او په خوښئِ سره ئې قبول کړ ۷ او ټولو چه دا و ۶-۷
لیدل سره وگنړیدل و ئې وېل چه دې دَ گنهګار سړي کره داخل شه
۸ او زکّا ودریده خداوند ته ئې ووېل گوره خداونده زه نیم مال خپل ۸
مسکینانو ته ورکوم او که مِ چرې په ټګئِ سره څه له چا نه اخستې وِي
څلور چنده ئې ورکوم ۹ یسوع ور ته ووِ چه دې کور ته نن نجات ۹
راغلې دې ځکه چه دې هم دَ ابراهام ځوې دې ۱۰ ځکه چه ابنِ آدم دَ ورک ۱۰
شوي دَ لټولو او دَ خلاصولو دَپارَ راغلې دې

۱۱ او چه هغوي دا خبره اوریده یو مثال ئې ور ته ووایه ځکه ۱۱
چه دې اورشلیم ته نژدې وه او دَ هغوي دا گمان وه چه بادشاهي دَ
الله دستې ښکاره کیدونکې ده ۱۲ نو ده ووېل چه یو بزرگ سړې لرې ملک ۱۲
ته لاړ شه چه دَ خپل ځان دَپارَ بادشاهي واخلي او بیرته راشي ۱۳ نو ده ۱۳
لس مریونه خپل را وه بلل لس اشرپئِ ئې ورکړې او ور ته و ئې
وېل چه څما دَ راتلو پورې سوداګرې کوئِ ۱۴ لیکن ښهریانو ورسره کینه ۱۴

لوله او ده پسي ئي پيغام ور واستوه چه نه غوارو چه دغه سړي په مونږ
١٥ باندِ بادشاهت کوي ١٥ او داسي وشول چه هغه بادشاهت بيامونده نو
را وګرزيده او هغه مريونه چه نقد ئي ورکړي وه را و ئي بلل چه
١٦ معلوم ئي کړي چه چا په سوداګرئِ کښ څه ګټه کړي ده ١٦ نو وړومبي
ورغي و ئي ويل اي خاونده ستا اشرپيو لَس نوري اشرپئِ ګټلي دِي
١٧ ١٧ ده ور ته ووِ شاباش اي نيک مرييه دي دَپارَ چه ته په لږ خيز
١٨ کښ امانت دار وختي په لَسو ښهرونو مختار شه ١٨ او دويم ورغي و ئي
١٩ ويل اي خاونده ستا اشرپيو پنځه نوري اشرپئِ پيدا کړي دِي ١٩ نو ور ته
٢٠ ئي وويل چه ته هم په پنځو ښهرونو مختار شه ٢٠ بيا هغه بل راغي و ئي ويل
اي خاونده وګوره دا ستا اشرپئِ چه په رومال کښ مِ خوندِي کړي ده
٢١ ٢١ ځکه چه زه له تا نه ويريدم چه ته سخت سړي ئي اخلي هغه څه چه
٢٢ دِ ينښي نه وِي او ريبي هغه څه چه دِ کرلي نه وِي ٢٢ دَه هغه ته ووِ
اي بده مريئَ ستاله خولي نه تا پرکوم تا فکر وکړ چه زه سخت سړي
يم اخلم هغه څه چه ينښي مِ نه وِي او ريبم هغه څه چه کرلي مِ
٢٣ نه وِي ٢٣ نو تا ولي ځما نقد صرافانو ځخه نه کينبوده چه زه راغلي وي
٢٤ نو هغه به مِ له ګټي سره اخستي وه ٢٤ او ده هغو ته چه ورځخه
ولاړ وُو ووِ چه اشرپئِ ور نه واخلئِ او دَ هغه لَسو اشرپوخاوند ته
٢٥ ئي ورکړي ٢٥ نو ده ور ته ووِ اي خاونده هغه ځحه خو لَس اشرپئِ
٢٦ شته ٢٦ زه تاسي ته وايم چه هغه ته چه څه لري ور به کړي شي
٢٧ مګر هغه چه نه لري نو هغه څه چه لري هم تر وا به حستي شي ٢٧ مګر
ځما هغه دښمنان چه نه ئي غوښت چه زه په دوي باندِ بادشاهت وکړم
دلته ئي راولئ او ځما د وړاندِ ئي قتل کړئِ
٢٨ ٢٨ او چه دا خبري ئي ووئيلي مخ په وړاندِ اورشليم ته وخوت
٢٩ ٢٩ او داسي وشول چه هر کله چه بيت فګا ته او بيت عينئ ته نزدي
هغه غره ځخه چه زيتون ور ته وايه شي ورغي دوه تنه ئي له خپلو شاګردانو

نه واستول ۳۰ او ورته وئي ويل چه دې کلي ته چه مخامخ سودي ورشئ ۳۰
او چه ورننوزئ نو يو کوچي به تړلي بيامومئ چه هيڅوک چړي په هغه
باندِ سواره شوي نه دي پرانئ نزئ او راتئ ولئ ۳۱ او که څوک له تاسي نه ۳۱
پوښتنه وکړي چه ولي ئي پرانزئ نو داسي ووايئ چه دا دَ خداوند پکار
دي ۳۲ او هغه چه استولي شوي وُو لاړل او دا هسي ئي بيامومند لکه ۳۲
چه ئي ورته ويلي وُو ۳۳ اوچه دوي کوچي پرانست خاوندانو ئي ورته ووِ ۳۳
ولي دا کوچي پرانزئ ۳۴ دوي ورته وويل چه دا دَ خداوند په کار دي ۳۴
۳۵ او هغه ئي يسوع ته راوست او دوي خپلي جامي په کوچي باندِ ۳۵
واچولي يسوع ئي وربانديِ سور کړ ۳۶ اوچه دي تهٔ نو هغوي خپلي ۳۶
جامي په لاري کښ ورته وغوړولي ۳۷ او چه اوس دَ زيتون دَ غره لمني ۳۷
ته نژدي شه نو دَ ده دَ شاګردانو ټول جماعت دَ هغو ټولو معجزو په
سبب چه ليدلي ئي وي خوشحال شول په لوړ آواز سره دَ الله په ثنا
کولو سر شول ۳۸ ويل ئي مبارک دي هغه بادشاه چه دَ خداوند په نوم سره ۳۸
راځي په آسمان کښ صلح او تمجيد په اعلیٰ عليّين ۳۹ او له ټولي نه ۳۹
څنو له فريسيانو نه ورته ووِ اي استاذه خپل شاګردان وټرټه ۴۰ او ۴۰
ده هغوي ته په ځواب کښ وويل چه زه درته وايم که دوي چپ شي
نو کاڼي به ناري وکړي

۴۱ اوچه نژدي شه او ښهر ئي وليد نو په هغه باندِ ئي و ۴۱
ژړل او وئي ويل ۴۲ کاشکي که ته هم په دي ورځ کښ په هغو خبرو چه ستا دَ سلامتيا ۴۲
دپارَ دي پوهيدلي مګر اوس هغه ستا له سترګو نه پټي دي ۴۳ ځکه ۴۳
چه هغه ورځي به په تا باندِ راشي چه ستا دښمنان به ستا په ګرداګرد
مورچي وتړي او تا به ګير کړي او له ټولو طرفونو نه به دِ تنګ کړي ۴۴ او ۴۴
تا او ستا هلکان چه په تا کښ دي په خاورو بهٔ ئي وغورزوي او به
تا کښ به کاڼي په کاڼي پري نږدي ځکه چه تا دَ خپلي بازخواست وقت
و نه پيژاند

۴۵ ۴۵ او هیکل ته ورننوت او دَ هغو په یستلو چه په کښې خرڅونکي
۴۶ وُو سر شه ۴۶ او هغوي ته ئي وویل چه لیکلي دِي چه څما کور دَ نمونځ کور
دي مګر تاسو ترِ دَ غلو غار جوړ کړي دي
۴۷ ۴۷ او ده هره ورځ په هیکل کښې تعلیم ورکاوه او سردار کوهینان
۴۸ او کاتبان او اشرافان دَ قوم دَ ده دَ هلاکولو په تلاش کښې وُو ۴۸ مګر
په ده ئي قابو بیا نه موند چه څرنګ وکړِي څکه چه ټول قوم دَ اوریدلو
دَپارَ پرِ اویزان وه

## شلم باب

۱ ۱ او په یوي له ورځو نه داسي وشول چه ده په هیکل کښې قوم ته
تعلیم او زیري دَ انجیل ورکاوه نوسردار کوهینان او کاتبان له سپین ږیرو
۲ سره پرِ و دریدل ۲ ور ته و ئي ویل چه مونږ ته ووایه چه ته په کوم
۳ اختیار سره داکوي او څوک دي چه تا ته ئي دا اختیار درکړي دي ۳ ده
په ځواب کښې ور ته وویل چه زه به هم له تاسي نه دَ یوي خبري پوښتنه
۴ ۵ وکړم نو را ته ووایئِ ۴ دَ یوحنّا بپتسما له آسمانَ وه یا له سړو نه ۵ او
هغوي په خپل مینځ کښې فکر وکړ و ئي ویل چه که مونږ ووایو له آسمانَ
۶ وه نو دي به ووایِي چه نو تاسو ولي په هغه ایمان را نه وړ ۶ او که ووایو
چه له سړو نه وه نو ټول قوم به مو سنګسار کړِي څکه چه هغوي په
۷ دي قائل دِي چه یوحنّا نبِي وه ۷ نو دوي ځواب ورکړ چه مونږ نه پوهیږو
۸ چه له کومه وه ۸ نو یسوع دوي ته ووِ چه زه هم تاسو ته نه وایم چه
په کوم اختیار سره دا کارونه کوم
۹ ۹ بیا دي خلقو ته دَ مثال په ویلو سر شه چه یو سړِي دَ انګورو
باغ و لګاوه او باغوانانو ته ئي وسپاره او ده دیره موده په بل ملک کښې
۱۰ تیره کړه ۱۰ او په فصل ئي یو مریي باغوانانو ته واستاوه تا چه دَ باغ له
میوی نه ورکړِي مګر باغوانانو هغه په کوږو وواهه تش لاس ئي
۱۱ واستاوه ۱۱ بیا ئي بل مریي ورواستاوه نو دوي هغه هم په کوږو وواهه او سپک ئي کړ او

۱۲ تش لاس بيُ وجاريست ۱۲ بيا ئي دريم ورواستاوه مكر هغه ئي ژوبل كړ هر
۱۳ ئي وويست ۱۳ نو د باغ خاوند ووِ څه وكړم زه به خپل ځوي چه په ماګران دي ور
۱۴ واستوم ګُندِ چه دي ووبني ادب ئي وكړِي ۱۴ ليكن چه باغوانانو هغه وليد په
خپل مينځ كښ ئي صلاح سره وكړه او وئي ويل چه هغه دغه وارث دي مړ به ئي كړو
۱۵ چه ميراث ځمونږ شي ۱۵ نو هغه ئي له باغ نه بهر وويست او قتل ئي كړ نو دَ
۱۶ باغ خاوند به له هغو سره څه وكړِي ۱۶ هغه به راشِي او دغه باغـوان به
هلاك كړِي او باغ به نورو ته وركړِي هغوي چه دا واوريدل وئي ويل چه
۱۷ داسي دِ ونه شي ۱۷ ليكن ده هغوي ته نظر وكړ وئي ويل نو دا څه دِي چه ليكلي دِي چه

هغه كاڼړي چه معمارو ردكړ
هم هغه دَ كُټ سر شه

۱۸ ۱۸ هر څوك چه په هغه كاڼړِي پريوزِي ريز مريز به شِي او په چا چه هغه
پريوزِي دَ ګرد په شان به ئيُ والوزوِي
۱۹ ۱۹ نو كاتبانو او سردار كوهينانو وغوښتل چه هم په هغه ساعت
ده ته لاس ورواچوِي مګر له خلقو ويريدل ځكه چه دوي وپوهيدل چه
۲۰ دا مثال ئي دَدوي په حق كښ ووايه ۲۰ او دوي ده ته په څوكښ شول او
جاسوسان چه خپل ځان ئيُ په ريا سره صادق كاوه واستول چه دي دَده
په خبره كښ ونښِي دي دَپارَ چه دَ حاكِم قدرت او اختيار ته ئي وسپارِي
۲۱ ۲۱ نو دوي دَدِي خبري پوښتنه ور نه وكړه چه اي استاده مونږ
پوهيږو چه ته صحي خبري او ښوونې كوي او دَ چا مخ نه كوي بلكه دَالله
۲۲ لاري په رښتيا سره ښيي ۲۲ مونږ ته روا دِي او كه نه چه قيصر ته جزيه
۲۳ ۲۴ وركوو ۲۳ ليكن دي دَ هغو په مكر پوه شه ورته وئي ويل چه ۲۴ يو دينار
راښكاره كړيِ چه په هغه بانډِ دَچا صورت او ضرب دَي دوي ورته وويل
۲۵ دَ قيصر ۲۵ ده ورته وويل نو دَ قيصر څيزونه قيصر ته او دَالله څيزونه
۲۶ الله ته وركوئِ ۲۶ او هغوي دَ قـوم دَ وړاندِ پـه هيڅ خبره نيولي نه شـه
او دَده ځواب ته ئي تعجب وكړ او چپ شول

۲۷ ۲۷ او څو تنه له صدوقیانو چه وائي چه قیامت نشته ورغلل او
۲۸ پوښتنه ئې تر وکړه و ئې ویل ۲۸ چه ای استاذه موښ ته موسیٰ لیکلي دي
چه که د چا ورور مړ شي او ښځه ئې وي او دی بې اولاد وي نو د هغه
۲۹ ښځه دِ وکړي او د خپل ورور د پاره دِ نسل پورته کړي ۲۹ نو اوه وروڼه
۳۰ ۳۱ وُو او ورمبي ښځه وکړه او بې اولاده مړ شه ۳۰ بیا دویم ۳۱ بیا دریم هغه
وکړه او په دې شان هغوي اوو سره هلکان پرِ نه ښول او مړه شول
۳۲ ۳۳ ۳۲ او آخر هغه ښځه هم مړه شوه ۳۳ نو هغه ښځه به په قیامت کښ
۳۴ د کوم یوه ښځه وي ځکه چه دغه خو د هغو اوو وارو ښځه وه ۳۴ او
یسوع ور ته وویل چه ځامن د دې زمانې ودونه کوي او ودولي شي
۳۵ ۳۵ لیکن هغوي چه د هغه زمانې او د مړو د قیامت د ښریکېدلو لایق
۳۶ ګنړلي شي نه ودونه کوي او نه ودولي شي ۳۶ او بیا مړه کېدلي نه شي او
د فرښتګانو غوندې دي او د الله ځامن دي ځکه چه د قیامت ځامن
۳۷ دي ۳۷ او دا چه مړي به ژوندي پورته شي موسیٰ هم په بوټي کښ
اشارت کړي دي چه خداوند الله د ابراهام او الله د اسحاق او الله د
۳۸ یعقوب وائي ۳۸ نو الله د مړو نه دی بلکه د ژوندو دی ځکه چه ده
۳۹ ته ټول ژوندي دي ۳۹ نو څنو له کاتبانو په ځواب کښ ور ته وویل
۴۰ چه ای استاذه ښه دِ ویلي دي ۴۰ ځکه چه پس له هغه ئې زړورتوب
و نه کړ چه څه نوره پوښتنه تر وکړي
۴۱ ۴۱ او ده ور ته وویل چه تاسو څرنګ وائئ چه مسیح د داؤد ځوي
۴۲ دي ۴۲ ځکه چه داؤد په خپله د زبور په کتاب کښ وائي چه
خداوند ځما خداوند ته ووې
چه ته ځما په ښي لاس کښېنه
۴۳ ۴۳ تر هغه پورې چه زه ستا دښمنان ستا د پښو لاندې کړم
۴۴ ۴۴ نو چه داؤد هغه ته خداوند وائي بیا څرنګ ئې ځوي شه
۴۵ ۴۶ ۴۵ او چه ټول قوم اورېدل ده خپلو شاګردانو ته وویل ۴۶ چه له

کاتبانو احتیاط کوئ چه په اوږدو جامو کښې گرځېدل غواړي او په بازارونو
کښې په سلامونو او په عبادتخانو کښې په اوله کرسئ او په میلمستیا
کښې په سر دَ مجلس مینه کوي ۴۷ چه دَ کونډو کورونه نغړي او په بهانې ۴۷
سره اوږده نمونځونه کوي نو دوي به ډېر گرموالی ومومي *

# یوویشتم باب

۱ او چه ده نظر وکړ وئ لیده چه دولتمندانو خپل نذرونه دَ هیکل ۱
په بیت‌المال کښې اچول ۲ او یوه خواره کونډه ئ هم ولیده چه هلته کښې ۲
ئ دوه دمړي واچول ۳ او وئ ویل چه زه تاسو ته رښتیا وایم چه دې ۳
غریبي کونډې له ټولو نه زیات واچول ۴ ځکه چه هغوي ټولو په سبب ۴
دَ ډېروالي دَ مال خپل په نذرونو کښې واچول مگر دې له خپلې محتاجئ نه
ټوله گذاره چه دَدې وه وا ئ چوله

۵ او چه ځنو دَ هیکل په باب کښې خبري کولې چه په ښو ښو ۵
کاڼو او په پیشکشیو سره آراسته شوي دي نو ده ووې ۶ تاسو دا څیزونه ۶
وینئ هغه ورځې به راشي چه له دغو به یو کاڼي په بل کاڼي پرې نه
ښود شي چه ونه نړاوه شي ۷ نو هغوي له ده نه پوښتنه وکړه وئ ویل چه اي استاذ ۷
دا کارونه به کله وشي او هغه نښې چه دا به په کښې کېږي څرنگ به
وي ۸ ده ورته ووې گورئ چه گمراه نه شئ ځکه چه ډېر به په نامه ۸
زما راشي او وبه وايي چه هغه زه یم او هغه وقت نژدې دي نو په
هغو پسې مه ځئ ۹ او هر کله چه جنگونه او غلغلې واورئ نو مه ۹
ویرېږئ ځکه چه دَ دې خبرو واقع کېدل ورمبي بايد دي مگر آخر په جلتئ
سره نه دي ۱۰

۱۰ نو دوي ته ئ ووې چه قوم به په قوم او بادشاهي به په بادشاهئ
پورته شي ۱۱ او لوئي زلزلې او په ځنو ځنو ځایونو کښې قحطونه او وبا به شي ۱۱
او ویرې او لوئي نښې به له آسمانه وشي ۱۲ مگر له دې ټولو خبرو ۱۲
وړاندې به په تاسي خپل لاسونه واچوي او وبه مو رټوي او عبادتخانو

ته او بندِيخانو ته به مو ځما دَ نامه په سبب وسپارِي او بادشاهانو
۱۳ او حاکمانو ته به مو راکاږي ۱۳ او دا به ستاسي دَپارَ شاهدِي وګرزِي
۱۴ ۱۴ پس په خپلو زړونو کښِ ټِيګ کيږدئِ چه دَځواب کولو دَپارَ وړاندِ فکر
۱۵ و نه کړئِ ۱۵ ځکه چه زه به تاسو ته داسي خله او حکمت درکړم چه ستاسي
۱۶ ټول مدعيان به دَ خلاف وِيلو او دَ برابرئِ کولو طاقت نه لرِي ۱۶ او تاسو
به له مورَ پلاره .او له ورونړو اوخپلوانو دوستانو نه وسپارلِي شئِ اوځيني
۱۷ به در نه مړه کړِي ۱۷ اوځما دَ نامه په سبب به له ټولو نه کينه کړِي شئِ
۱۸ ۱۹ ۱۸ ليکن ستاسي له سره به يو وېښته ورک نـه شِي ۱۹ نو په خپل
صبر سره به خپل ځانونه وګټئِ
۲۰ ۲۰ مګر چه تاسو ووينئِ چه له فوځونو اورشليم ګير کړِي شوي دي نو
۲۱ هله پوه شئِ چه دَده ويرانِي نزدي ده ۲۱ هغه وقت چه څوک په
يهودِيه کښِ وِي غرونو ته دِ وتښتِي او هغوي چه دَ ښهر په مينځ کښ
۲۲ وِي بهر دِ ووزِي او هغوي چه په وطن کښ وِي دننه دِ نه ورځِي ۲۲ ځکه
چه دا ورځي دَ بدل اخستلو دِي تاچه هغه ټول چه ليکلِي شوِي دِي پوره
۲۳ شِي ۲۳ هئِ هئِ په هغو چه په هغو ورځو کښ ټِيګ کيدِي وِي او ټِيګ ورکونکي
وِي ځکه چه په زمکه باندِ به لوي ضرورت وِي او په دي قوم به غضب
۲۴ وشِي ۲۴ او هغوي به دَ توري په مخ سره سرِ پريوزِي او دَ ټولو قومونو
په مينځ کښ به بنديان بوتلي شِي او تر هغه پوري چه دَ قومونو وقت
۲۵ پوره نه شِي نو اورشليم به له قومونو نه پايمال کړِي شِي ۲۵ او په نمر
او په سپوږمئِ او په ستورو کښ به نخښي وشِي او په زمکي باندِ به دَ
قومونو تنګي له حيرانئِ سـره دَ قعر درياب او دَده دَ موجونو دَ غريدلو
۲۶ په سبب به وشِي ۲۶ سرِي به دَ ويري په سبب او دَ هغو څيزونو چه په
زمکي راتلونکِي دِي بيځانه شِي چه دَ آسمانونو قوتونه به وخوځولي شِي
۲۷ ۲۷ او هغه وقت به ابنِ آدم په اوريځي کښ په قدرت او په لوي جلال
سره راتلونکي ووينِي ۲۸ او چه دا څيزونه کيدونِي شِي ياس کورئِ اوخپل

سرونه پورته کړئ ځکه چه ستاسي خلاصي درنږدي کيږي
۲۹ او ده هغوي ته مثال هم ووايه چه دَ اِنځر ونه او ټولي ۲۹
وُني وګورئ ۳۰ هر کله چه غوټئ وباسي نو په ليدلو سره ئي پخپله ۳۰
پوه شئ چه اوس اوړئ نږدي دَی ۳۱ په دي شان سره تاسو هم چه ۳۱
وويني چه دا څيزونه کيږي نو پوه شئ چه بادشاهي دَ الله نږدي
ده ۳۲ زه تاسو ته رښتيا وايم چه دا پښرئ به تيره نه شي تر هغه ۳۲
پوري چه دا ټولي خبري پوره نه شي ۳۳ آسمان او زمکه به لړي ۳۳
شي مګر زما خبري به لړي نه شي
۳۴ خان ساتئ هسي نه چه ستاسي زړونه په ډکوالي او په ۳۴
نشه او دَ ژوندانه په انديښنو کښ درانه شي او هغه ورځ لکه
لومه په تاسو ناګهانه راشي ۳۵ ځکه چه هم هسي به دَ ټولي زمکي ۳۵
اوسيدونکي ګير کړي ۳۶ نو هر وقت ويښ اوسئ او زاري کوئ تا چه ۳۶
تاسو له دَ غو ټولو څيزونو چه کيدونکي دي خلا شئ او دَ ابنِ آدم دَ
ودريدلو طاقت ومومئ
۳۷ او ده به دَ ورځي په هيکل کښ تعليم ورکاوه او شپه ۳۷
به ئي بهر بيا دَ زيتون نومي په غره باندِ تيروله ۳۸ او صباح به ټول ۳۸
قوم دَده خبرو اوريدلو له هيکل ته راتله ✣

## دو ويشتم باب

۱ او دَ فطيرو اختر چه فسح ورته وايه شه نږدي شه ۲ او سردار ۱-۲
کوهينانو او کاتبانو به لټاوه چه دي ځرنګ مړ کاندِ ځکه چه له
قوم ويريدل
۳ نو شيطان په يهودا کښ چه اسقريوطي باله شه او دَ هغو ۳
دولسو په شمار کښ وه ننوت ۴ نو دي لاړ شه او له سردار کوهينانو ۴
او له صوبدارانو سره ئي خبري وکړي چه دي ځرنګ دوي ته وسپاري
۵ او هغوي خوشحال شول او دَ روپيو ورکولو اقرار ئي ورسره وکړ ۵

٦ ٦ او ده ومنله او دَ قابو په تلاش کښ وه چه دي له خلقونه پټ ور
وسپارِي
٧ ٧ او ورځ دَ فطيرو چه په هغه کښ دَ فسح ذبح کول بايده
٨ وُه راغله ٨ نو ده پطرس او يوحنّا واستول وئ ويل چه لاړ شئ فسح
٩ څمونږ دَپارَ تياره کړئ چه وئ خورو ٩ هغوي ده ته ووِ چرته ئي غواړِي
١٠ چه مونږ ئي تياره کړو ١٠ ده ورته ووِ چه گوره چه ښهر ته ننوزئ
نو يو سړي چه دَ اوبو منگي به ئي اخستي وِي تاسو ته به مخامخ
١١ درشي نو دَ هغه کره چه دي ورننوزي ورپسي ځئ ١١ او دَ کورخاوند
ته ووائي استاذ در ته وائي چه مهمانخانه چرته ده چه زه به هغي کښ
١٢ له خپلو شاگردانو سره فسح وخورم ١٢ او هغه به تاسو ته يوه لويه
١٣ اراسته کړي شوي بالاخانه وښيي هلته تياري وکړئ ١٣ او دوي لاړل
لکه چه ده ورته ويلي وُو هم هسي ئي بيامونده او فسح ئي تياره کړه
١٤ ١٤ او چه وقت شه نو دي او دولس رسولان ورسره کښيناستل
١٥ ١٥ او دوي ته ئي وويل چه ځما ډير خواهش وه چه له خپل درد
١٦ زغملو نه وړاندِ دا فسح له تاسو سره وخورم ١٦ ځکه چه زه تاسو ته
وايم چه نور به هغه و نه خورم تر هغه پوري چه دَ الله په بادشاهئ
١٧ کښ پوره نه کړي شي ١٧ او پياله ئي واخسته او چه شکر ئي کړي وه
١٨ و ئي ويل چه دا واخلئ او په خپل مينځ کښ ئي ووېشئ ١٨ ځکه چه زه
تاسو ته وايم چه بيا به تر هغه پوري دَ انگورو له شيري و نه څښم څو
١٩ چه دَ الله بادشاهي را نه شي ١٩ او ډوډئ واخستله شکر ئي کړي وه
نو مانه ئي کړه او دوي ته ئي ورکړه ورته وئ ويل چه دا ځما هغه جُسّه ده
٢٠ چه ستاسي دَپارَ ورکيږي دا ځما دَيادگارئ دَپارَ کوئ ٢٠ دا هسي پياله
ئي هم پس له خوراکَ واخسته وئي ويل چه دا پياله نوي عهد دي ځما
٢١ په وينو کښ چه ستاسو دَپارَ توييږي ٢١ مگر گوره ځما دَ سپارونکي
٢٢ لاس له ما سره په خوانچه کښ دي ٢٢ ابن آدم خو ځي بلکه چه مقرر

شوِي دِي مګــر هئ په هغه سړِي بانډِ چه له هغه نه وسپارلي
٢٣ شِي ٢٣ اوِ دوي په خپل مينځ کښ پوښتنه سره کوله چه له مونږ نه
به هغه څوک وِي چه دا کار به وکړي
٢٤ ٢٤ او په دوي کښ جګړه هم وشوه چه له هغو نه به کوم يو
٢٥ لوي ګڼلي شِي ٢٥ ده هغوي ته ووِ چه دَ قومونو بادشاهان په هغوي
بانډِ خــاوندِي کوِي او دَدوي اختياردارانِ په هغوي احسان کوونکي
٢٦ بللي شِي ٢٦ مګر تاسي داسي مه شئِ بلکه هغه چه ستاسي په
مينځ کښ لوي وِي دَ کشر په شان دِ شِي او سردار دِ دَ خدمتګار
٢٧ په شان ٢٧ څکه څوک لوي دي؟ هغــه چه په ډوډي کښيني يا هغه چــه
خدمت کوِي هغه نه دي چه په ډوډئ ناست دي څه؟ ليکن زه
٢٨ ستاسو په مينځ کښ دَ خادم په شان يم ٢٨ تاسو هغه يئِ چه له
٢٩ ما سره به څما په ازميښتونو کښ پاتي شئِ ٢٩ او زه ستاسو دَپارَ
يوه بادشاهِي مقرّره وم لکه چه څما دَپارَ څما پلار مقرّره کړي ده
٣٠ ٣٠ تا چه څما په بادشاهئ کښ څما په خوانچه وخورئ او وڅښئ او
٣١ په تختونو کښينئِ او په دولسو فرقو دَ اسرائيل به حکم کوئِ ٣١ اي
شمعونه شمعونه ګوره شيطان و غوښتل چه تا دَ غنمو په شان
٣٢ وڅپوِي ٣٢ مګر ما ستا دَپارَ دعا وکړه چه ستا ايمان حبطه نه
٣٣ شِي او چه ته راوه ګـــرزي نو خپل وروڼړه مضبوط کړه ٣٣ او
هغه ده ته ووِيل چه اي خداونده زه له تا سره بندِيخانې او مرګ
٣٤ ته په تلو هم تيار يم ٣٤ وئ وِيل اي پطرسَ زه تا ته وايم چه هم
نن ورځ به چرګ بانګ و نه واِئي چه ته به دري واره له ما نه انکار
وکــړي چه نه ئې پيژنم
٣٥ ٣٥ او ده هغوي ته ووِيل هر کله چه ما تاسو بي کڅوړي او
بي توښه‌دانَ او بي څپليو واستولئِ نو دَ څه څيز محتاج شوئِ هغو ووِيل
٣٦ چه دَ هيڅ څيز نه ٣٦ نو ده ورته ووِيل ليکن اوس هغه چه کڅوړه

ورځخه وِي وادِخلِي او توبنه دان هم او هغه څوک چه نه ئې لرِي خپله
۳۷ جامه دِ خرڅه کړِي او توره دِ وپيرِي ۳۷ ځکه چه زه تاسي ته وايم چه
اوس هغه څه چه ليکلِي شوِي دِي بايد دِي چه په ما پوره شِي (يعني
دا چه دي دَ بي‌شرعو په مينځ کښ وګڼلِي شه ځکه چه هغه څه چه
۳۸ ځما په حق کښ دِي انجام ئې دي ۳۸ هغو ووِ اي خداونده ګوره
دلته دوه تورِي شته دي ده ورته ووِ بس دي
۳۹ ۳۹ او چه بهر ووت او لاړ نو په خپل عادت سره دَ زيتون غره
۴۰ ته روان شه او شاګردان هم ورپسي تلل ۴۰ هر کله چه په هغه ځاي
۴۱ وه نو دوي ته ئې ووِ چه دعا کوئِ چه په ازميښت کښ را نه شئِ ۴۱ او
دي يو کاڼِي پرتاب له هغو نه بيل شه زنګنونه ئې ولګول دعائې کوله
۴۲ و ئې ويل ۴۲ چه اي پلاره که ته غواړِي نو دا پياله را نه لرِي کړه مګر
۴۳ ځما اراده نه بلکه ستا دِ وشي ۴۳ او په ده باندِ يوه فرښته له آسمانه
۴۴ ظاهره شوه او ده ته ئې قوّت ورکړِ ۴۴ او په زحمت شوي ډيره ډيره دعا
۴۵ ئې کوله او خولي ئې دَ وينو دَ څاڅکو په شان په زمکي څڅيدلي ۴۵ او
له دعا نه پورته شه شاګردانو ته ورغي دوي ئې له غمه اوده بيامونده
۴۶ ۴۶ او ده ورته ووِ چه تاسو ولي اوده يئِ پورته شئِ دعا کوئِ چه په
ازميښت کښ پرِي نه وزئِ

۴۷ ۴۷ او ده لا دا ويل ګوره چه يو ټولي او له هغو دولسو تنو نه
يو چه يهوداه ورته وايه شه دَ هغو دَ وړاندِ ته او يسوع ته نژدي ورغي
۴۸ چه کښل ئې کړِي ۴۸ مګر يسوع ورته ووِ چه اي يهودا ته ابن‌آدم په
۴۹ کښلولو ورسپارِي څه ؟ ۴۹ او هغوي ورسره وُو هغه څه چه کيدوني
وُو و ئې ليدل نو و ئې ويل اي خداونده موږ دَ تورِي ګذار وکړو څه ؟
۵۰ ۵۰ او يوه له هغو نه په مريي دَ سردار کوهين ګذار وکړِ او ښي غوږ ئې
۵۱ ورنه يو وړ ۵۱ يسوع ځواب ورکړِ و ئې ويل چه په دي ئې پرېږدِئِ او دَ
۵۲ هغه غوږ ئې مسه کړ او جوړ ئې کړ ۵۲ او يسوع سردار کوهينانو او

صوبدارانو دَ هیکل او سپین‌ږیرو ته چه په ده باندِ راغلِي وُو وویل
چه تاسو له تورو او له لَرګو سره لکه چه په غل پسي راوتلي يئِ
۵۳ زه هره ورځ په هیکل کښ له تاسو سره وم او تاسو لاسونه را ۵۳
ونه غزول لیکن دا ستاسي ساعت او دَ تاریکئِ اختیار دي
۵۴ نو دوي دي ونیو بوته ئي دَ سردار کوهن کورته ئي ور ۵۴
ننه‌یوست مګر پطرس له لري ورپسي ته ۵۵ او چه دوي دَ دالان په مینځ ۵۵
کښ اور بل کړ او سره کښیناستل او پطرس دَ دوي په مینځ کښ
کښیناست ۵۶ یوي وینځي دي رڼا څخه ناست ولید ورته ځیره شوه ۵۶
وئ ویل چه دا سړي هم له هغه سره وه ۵۷ او ده انکار وکړ و ئي ۵۷
ویل چه اي ښځي زه ئي نه پیژنم ۵۸ او لږ څه پس بل چا ولید ور ته ۵۸
وئ ویل چه ته هم له هغو ئي پطرس ورته ووِ اي سړیه زه نه
یم ۵۹ او چه په ګمان سره یو ساعت تیر شه بل چا په تاکید سره ۵۹
ووِ چه په رښتیا سره دغه هم ورسره وه ځکه چه دي هم جلیلي دي
۶۰ پطرس ووِ اي سړیه زه نه پوهیږم چه ته څه وائي او چه ده لا ۶۰
دا ویل دسِتي چرګ بانګ ووایه ۶۱ او خداوند مخ وګرزاوه پطرس ته ئي ۶۱
نظر وکړ او پطرس ته خبره دَ خداوند وریاده شوه چه ده ته ئي
ځرنګ ویلي وه چه نن ورځ به له چرګ بانګ کولو نه وړاندِ دري واره له
ما نه انکار وکړي ۶۲ نو بهر ووت په زار زار ئي وژړل ۶۲
۶۳ او هغو سړو چه یسوع نیولي وه ټوقي پرِ وهلي او واهه ۶۳
ئي ۶۴ او دَ ده مخ ئي پټ کړ او پوښتنه ئي ترِ کوله و ئي ویل چه ته ۶۴
په نبوّت سره ووایه چه ته چا ووهلي ۶۵ او دَ ده په حق کښ ئي نور ۶۵
هم ډیر کفر ووِایه
۶۶ او چه ورځ شوه نو دَ خلقو بزرګان یعني سردار کوهینان ۶۶
او کاتبان جمع شول او دي ئي خپلي جرګي ته راوست او وئ ویل
چه که چري ته مسیح ئي نو مونږ ته ووایه ۶۷ نو ده هغوي ته ووِ چه که ۶۷

٦٨ زه تاسو ته ووايم نو تاسو به ايمان رانه وړئ ٦٨ او كه زه درنه پوښتنه وكړم
٦٩ نو تاسي به ځواب رانه كړئ ٦٩ مګر پس له دي به ابن آدم په ښي
٧٠ لاس دَ قدرت دَ الله كښينولي شي ٧٠ نو ټولو ووِ چه نو ته ابن‌الله يي؟
٧١ ورته ئي ووِ چه تاسي وائئِ چه زه يم ٧١ پس هغوي ووېل چه نوري
شاهدئ ته څه حاجت لرو مونږ ځپله دَده له خولي نه واوريدل +

## درويشتم باب

٢-١ ١ او هغه واره ټولي پورته شه دي ئي دَ پيلاطوس دَ وړاندِ ورووست ٢ او په ده
ئي نالش شروع كړ و ئي ويل چه دا سړي مونږ بياموند چه ځمونږ قوم اړوي
او دَ قيصر له جزيي وركولو نه ئي منع كوِي او وايِي چه زه مسيح بادشاه يم
٣ ٣ پيلاطوس پوښتنه ور نه وكړه وه ئي ويل چه ته دَ يهوديانو بادشاه
٤ يي څه؟ نو هغه له ئي جواب وركړ او و ئي ويل چه ته وايي ٤ او پيلاطوس
سردار كوهينانو او خلقو ته ووېل چه زه خو په دي سړي كښ هيڅ عِلّت
٥ نه مومم ٥ او هغوي په زباتي تندئِ سره ووِ چه دغه قوم لمسوِي په ټوله
٦ يهوديّه كښ له جليل نه ونسه تر دي ځايه پوري تعليم وركوِي ٦ نو
پيلاطوس دا واوريده او پوښتنه ئي وكړه چه دا سړي جليلِي دي څه ؟
٧ ٧ او چه دا ئي معلومه كړه چه دَ هيروديس دَ اختيار دي نو هيروديس
نه ئي واستوه چه هغه هم په هغو ورځو كښ په اورشليم كښ وه
٨ ٨ او چه هيروديس يسوع وليد نو ډير ډير خوشحاله شه ځكه چه
له ډيري مُدي نه دَده دَ ليدلو آرزومند وه ځكه چه له ده ئي ډير څه
٩ اوريدلِي وُو اميد ئي لاره چه له ده نه څه نښه هم ووينِي ٩ نو
له ده نه ئي دَ ډيرو خبرو پوښتنه وكړه مګرِ ده هيڅ ځواب ور نه كړ-
١٠ ١٠ نو سردار كوهينان او كاتبان ودريدل او په ډيري سختئِ سره ئي په ده
١١ نالش وكړ ١١ او هيروديس له خپلو لښكريانو سره دي سپك كړ او ټوقي
ئي پرِ وكړي او بلقيدونكي جامي ئي ور واغوستولِي بيا ئي پيلاطوس ته
١٢ واستوه ١٢ او هغه ورځ پيلاطوس او هيروديس سره دوستان شول

خکه چه ورانډِ ئي سره دښمني وه
۱۳ ۱۳ او پیلاطوس سردار کوهینان او سرداران او قوم سره را
۱۴ وبلل او ور ته و ئي ویل ۱۴ چه تاسو دا سړي ما ته پیش کړی دي لکه
چه څوک قوم اړوي او کوره ما ستاسو په مخ کښ له دغه تحقیقات وکړ
مګر ما دَ هغو څیزونو په باب کښ چه تاسو پرِ نالش کويِ په دي
۱۵ سړِي کښ هیڅ علّت بیا نه موند ۱۵ او نه هیرودیس څکه چه دي ئي
مونږ ته را وجاریست او کوره چه دَ ده نه داسي هیڅ کار شوي نه دي چه
۱۶ لایق دَ مرګ وِي ۱۶ نو زه به په کروړو تنبیه ورکړم او پرِ به ئي بږدم
۱۷ ۱۸ ۱۷ و ۱۸ او ټولو په یوي خولي سره فریاد وکړ و ئي ویل چه دغه بوزه او
۱۹ څمونږ دَپارَ براباس خلاص کړه ۱۹ چه دَیو فساد او دَ خون په سبب
۲۰ چه په ښهر کښ شوي وه په بندِيخانه کښ اچولي شوي وه ۲۰ نو پیلاطوس
بیا له دوي سره خبري وکړي څکه چه ده دا غوښته چه یسوع خلاص کړي
۲۱ ۲۱ او هغو ناري ووهلي و ئي ویل چه دغه په سولئِ کړه صلیب کړه
۲۲ ۲۲ بیا ئي دریم وار ور ته ووِ چه ولي څه بدِي ئي کړي ده ما په ده کښ
هیڅ علّت دَ مرګ بیا نه موند نو تنبیه به ورکړم او پرِ به ئي بږدم
۲۳ ۲۳ مګر دوي په لویو چغو سرِه تاکید وکړ چه دي په صلیب کړي شِي او
۲۴ دَ دوي آوازونه غالب شول ۲۴ او پیلاطوس حکم وکړ چه دوي غواړِي
۲۵ نو هسي دِ وشِي ۲۵ او هغه سړي چه دَ فساد او دَ خون په سبب
په بندیخانه کښ اچولي شوي وه او چه هغوي ورته غوښت ور خلاص
ئي کړ او یسوع ئي دَ دوي مرضيِ ته وسپاره
۲۶ ۲۶ او چه دي ئي بیوه نو شمعون نومي قوریني چه له پټي نه راته
وئي نیوه سولئِ ورباندِ کیښوده چه په یسوع پسي ئي یوسِي
۲۷ ۲۷ او یو لوي ټولي دَ قوم او دَ ښځو چه په ده باندِ ئي سیني
۲۸ وهلي او ویرئي کاوه دَده په ورستو ورستو تللي ۲۸ او یسوع دَ هغو په لوري
را وګرزیده و ئي ویل اي دَ اورشلیم لونړو په ما باندِ مه ژاړئِ بلکه

۲۹ به خپلو ځانونو او په خپلو هلکانو ژاړئ ۲۹ ځکه کوره ورځي راځي چه
(خلق) به په کښې ووائي چه مبارکي دي شنډې او هغه کېډې چه راي
۳۰ نه وړل او هغه تي چه رودلي شوي نه دي ۳۰ نو هله به په خبرو
غرونو ته شروع وکړي چه په مونږ باندې پرېوزئ او غونډيو ته چه پټ
۳۱ مو کړئ ۳۱ ځکه چه که دا کارونه له لوندو ونو سره کوي نو دَ وچي سره
به څه وکړے شي ؟
۳۲ ۳۲ او دوه نور هم چه بدکاران وُو دَده سره ئې دَ وژلو
دَ پارَ بوتلل
۳۳ ۳۳ او چه هغه ځاي ته چه ککري باله شي ورغلل هلته
ئې په صليب کړ او هغه بدکاران هم يو ئې په ښي طرف او بل ئې په کڼ
۳۴ ۳۴ او يسوع ووېل اي پلاره دوي وبخښه ځکه چه دوي نه پوهيږي
چه څه کوي او جامې دَده ئې سره ووېشلي او هِسك ئې پرې واچاوه
۳۵ ۳۵ او قوم ولاړ وه ننداره ئې کوله او سردارانو هم پرې پوري توقي کولې
او ويل ئې چه نور ئې خلاص کړل که چرې دي مسيح دَ الله غوره کړے
۳۶ شوي وي نو خپل ځان دِ خلاص کړي ۳۶ او سپاهيان هم راغله او
۳۷ سرکه ئې ور وړاندِ کړه او توقي ئې ور پوري وکړي او ويل ئې ۳۷ چه که
۳۸ ته دَ يهوديانو بادشاه يې نو خپل ځان خلاص کړه ۳۸ او يو سرنامه هم
پرِ دَپاسه ليکلي شوي وَه چه دا دَ يهوديانو بادشاه دي
۳۹ ۳۹ او له هغو ځوړند شويو بدکارانو نه يوه دَه ته ښکنځل وکړه
۴۰ و ئې ويل چه که ته مسيح ئې نو خپل ځان او مونږ خلاص کړه ۴۰ مګر
هغه بل ځواب ورکړ و ئې ترټه و ئې ويل چه ته هم له الله نه نه
ويريږي ځکه چه ته هم په دغه حکم کښې يې
۴۱ ۴۱ او مونږ خو په حقَ سره ځکه چه دَ خپلو عملونو بدله مو
۴۲ موندلي ده مګر دي سړي هيڅ يو بيځايه کار کړي نه دي ۴۲ و ئې ويل
اي يسوع چه هرکله ته په خپلي بادشاهئ کښې راشي نو ما ياد کړه

۴۳ او يسوع ورته ووِ چه زه تا ته رښتيا وايم چه هم نن ورځ به له ما ۴۳
سره په فردوس کښې شې
۴۴ او شپږم ساعت ته نژدې تر نهم ساعتَ پورې په ټول ملک ۴۴
تياره شوه ۴۵ او دَ نمر رڼا تته شوه او پرده دَ هيکل له مېنځ نه څيرې شوه ۴۵
۴۶ او يسوع په لوړ آواز سره ناره وکړه او وئې ويل اې پلاره زه خپل روح
ستا لاسو ته سپارم او چه دا ئې وويل نو سا ئې وخته ۴۷ او صوبدار چه ۴۷
دا حال وليد تمجيد دَ الله ئې وکړه و ئې ويل چه په تحقيق سره دا سړې صادق وه
۴۸ او ټول خلق چه دَدې ننداري دَپاره سره جمع شوې وُو چه دا واقعه ئې وليده ۴۸
خپلې سينې ئې وهلې بيرته وګرزيدل ۴۹ او ټول پيژندګلوي دَده او هغه ښځې هم ۴۹
چه له جليلَ ورسره راغلې وُو لرې لرې ورته ولاړ وُو او دا ئې وليدل
۵۰ او ګوره يوسف نومې يو سړې چه وزير او نيک سړې او صادق وه ۵۰
۵۱ [دې دَ هغو په کار او په مصلحت کښې ورسره شريک نه وه] چه دَ يهوديانو ۵۱
دَ ښهر ارمتيه اوسيدونکې او دَ الله دَ بادشاهۍ منتظر وه ۵۲ هغه پيلاطس ۵۲
څخه لاړ شه او دَ يسوع جُسّه ئې وغوښته ۵۳ او هغه ئې راکوز کړ په کتانې ۵۳
څادر کښې ئې ونغښت او په قبر کښې ئې کېښود چه په کاڼې کښې کنودلې شوې
وه او لا هيڅوک په کښې ايښې شوې نه وه ۵۴ او هغه ورځ دَ تيارۍ وه او دَ ۵۴
سبّت دَ ورځې لوې سحر نژدې وه ۵۵ او هغه ښځې چه له جليلَ ورپسې راغلې ۵۵
وې نژدې ورغلې قبر نه ئې کتل چه جُسّه ئې څرنګ ايښې شوې ده ۵۶ او بيرته ۵۶
وګرزيدې او خوشبويې او مُر ئې تيار کړل
۵۷ او دَ سبّت په ورځ موافق دَ شرعې ئې آرام وکړ ❖ ۵۷

## څليريشتم باب

۱ او په اوّله ورځ دَ هفتې کښې په لوې سحر ئې هغه خوشبويې چه تياري کړې وې ۱
واخستې قبر ته ورغلې ۲ او دوې کاڼې له قبر نه رغړيدلې بيامونده ۳ چه ور ۲ ۳
ننوتلې دَ خداوند يسوع جُسّه ئې بيا نه مونده ۴ او داسې وشول چه ۴
دوې دې خبرې ته حيرانې وې او ګوره چه دوه سړې

۵ چه برښیدونکي جامي يئ اغوستي وي دوي ته ودريدل ۵ او چه دوي
په ويري کښ شولي او مخ يئ زمکي ته ټيټ کړ نو دوي ته يئ ووِ چه
۶ تاسي ولي ژوندي په مړو کښ لټوئِ ۶ هغه دلته نشته بلکه پورته
شوي دي په ياد کړئِ هر کله چه دي په جليل کښ وه تاسو ته يئ
۷ خه وېلي وُو ۷ چه بايده دِي چه ابنِ آدم دَ ګنهګارانو سړو لاسونو
ته وسپارلي شِي او په صليب کړي شِي او په دريمه ورځ پورته شِي
۸-۹ ۸ نو دَ ده خبري وريادي شوي ۹ او له قبر نه وګرزيدي هغو يولسو
۱۰ او نورو پاتي شوو ته يئ دَ دي ټيزونو خبر ورکړ ۱۰ او مريمه مګدلينه
او يوحنّه او مريمه دَ يعقوب مور او نوري ښځي چه له هغوي سره
۱۱ وي رســولانو ته يئ دا خبري وکړي ۱۱ او دَ دوي خبري هغوي ته
۱۲ هسي خوشي ښکاره شوي او نه يئ منلي ۱۲ او پطرس پورته شه او
قبر ته يئ ورودوکړ چه ور ټيټ شه دننه يئ خالي کتاني کفن وليد
او له دغه کاره يئ په خپل زړه کښ تعجب کاوه خپل کور ته لاړ
۱۳ ۱۳ او ګوره په هغه ورځ دوه تنه له دوي نه يوه کلي ته چه
۱۴ يوه کروه له اورشليمَ لري عمااوس نوم يئ وه تلل ۱۴ او دوي
۱۵ دَ دي ټولو واقعو په باب خبري سره کولي ۱۵ او داسي وشول چه
دوي خبري او بحث سره کاوه يسوع پخپله دوي ته نژدي ورغي او
۱۶ ور سره روان شه ۱۶ مګر دَ دوي سترګي بندي شوي چه دي و نه
۱۷ پيژنِي ۱۷ او ده ور ته ووِ چه دا څه خبري دِي چه تاسو يئ په تلو
۱۸ کښ يو له بل سره کوئِ او دوي ودريدل خپه په نظر راغلل ۱۸ نو له
هغونه چه کليوپاس نوم يئ وه په ځواب کښ ور ته ووِ چه ته يواځي
په اورشليم کښ بيګانه يي څه؟ چه هغه څه چه په دي ورځو کښ
۱۹ په ده کښ شوِي دِي پرِخبر نه يي ۱۹ او ده ور ته ووِ چه څه دِي
هغوي ور ته ووِ دَ يسوع ناصرِي په حال چه پيغمبر او دَ الله او دَ
۲۰ ټول قوم دَ وړاندِ په کار او په کلام کښ قادر وه ۲۰ او څرنګ سـردار

کوهیټانو اوځمونږ حاکمانو فتوئ دَقتل ور باندِ ورکړه او په سولئ ئي کړ
۲۱ او مونږ امید لاره چه هم دغه به دَ اسرائیلو خلاصونکي شي او علاوه ۲۱
له دي ټولو نن دریمه ورځ ده چه دا کارونه وشول ۲۲ سره له دي ځیني ۲۲
ښځو ځمونږ له طرفَ هم مونږ حیران کړو ځکه په لویِ سحر قبر ته تللي وي
۲۳ او دَ ده جُسّه ئي و نه موندله او راغلي او و ئي ویل چه مونږ منظر دَ فرښتو ۲۳
هم لیدلي دَي ویل ئي چه دي ژوندي دي ۲۴ اوځني له هغو چه ځمونږ سره وُو ۲۴
قبر ته ورغلل او داسي حال ئي وموند لکه چه ښځو ویلي وُو مګر دي ئي و
نه لید ۲۵ او ده هغو ته ووِ اي ناپوهو او په ایمان راورلو دَ هغو ټولو ۲۵
خبرو چه نبیانو ویلي دِي سست دلانو ۲۶ بایده نه وه چه مسیح دا درد ۲۶
وزغمي او خپل جلال ته ننه‌وځي ۲۷ او له موسی او له ټولو نبیانو ئي شروع ۲۷
کړل او دوي ئي په هغو ټولو صحیفو چه دَ ده په حق کښ وي بیان ئي کړي
۲۸ او دوي هغه کِلي ته چه ورتلل ور نژدي شول او ده داسي معلوم کړ ۲۸
چه په وړاندِ ځي ۲۹ مګر دوي زور پرِ باند وکړ ورته وئي ویل چه له ۲۹
مونږ سره پاتي شه ځکه چه ماښام دي او اوس ورځ تیره ده نو دننه ورغی
او ورسره پاتي شه ۳۰ او داسي وشول چه دي ورسره ناست وه ډوډي ئي ۳۰
واخسته او برکت ئي پرِ ووایه او ماته ئي کړه او دوي ته ئي ورکړه ۳۱ نو دَ دوي ۳۱
سترګي خلاصي شوي او وئي پېژاند او دي ترِ غایب شه ۳۲ او دوي یو بل ته ۳۲
سره ووِ چه په لاري کښ ئي ځمونږ سره خبري کولي او ځمونږ دَپارَ ئي صحیفي
پرانتلي نو ځمونږ زړه په مونږ کښ نه سوزیده څه ؟ ۳۳ او دوي په هغه ۳۳
ساعت پاڅیدل اورشلیم ته وجاړوتل او هغه یوولس ملګري ئي یوځاي
وموندل ۳۴ ورته وئي ویل چه خداوند په حقیقت سره ژوندي پورته ۳۴
شوي دي او شمعون ته ور ښکاره شوي دي ۳۵ او هغوي هم بیان وکړ ۳۵
چه څرنګ په لاري او دَ ډوډي په ماتولو سره ئي دي وپېژاند
۳۶ او چه دوي لا دا خبري کولي یسوع پخپله دَ دوي په منځ کښ ۳۶
ودریده او وئي ویل چه السّلام علیکم ۳۷ او دوي هیبت زده او ویریدونکي ۳۷

٣٧ وَو کړمان ئې کاوه چه روح وينو ٣٨ او ده ورته وويل چه ولې حيران
٣٨ شوئ او ځله ستاسو په زړه کښ فکرونه پورته کيږي ٣٩ ښما لاسونه او ښما
پښې وګورئ چه هم زه يم او لاسونه را باندِ ووهئ ګورئ روح غوښې
٤٠ او هډونه نه لري لکه چه تاسو ئې وينئ چه زه ئې لرم ٤٠ او سره
٤١ له دې خبرو دوي ته ئې لاسونه او پښې وښوول ٤١ او چه لا دوي
له خوشحالئ نه باور نه کاوه او حيران شول نو دوي ته ئې وويل چه
٤٢ څه خوراک دلته شته ٤٢ نو دوي يوه ټکړه له وريت کړي کب نه
٤٣ ورکړه ٤٣ او ده واخستله او دَ دوي په مخ کښ ئې وخوړله
٤٤ ٤٤ او دوي ته ئې وويل چه دا ښما هغه کلامونه دي چه تاسو
ته مې په هغه وقت کښ ويل چه زه له تاسو سره وم چه بايده دي چه
هر هغه څه چه دَ موسی په توريت او دَ نبيانو په صحيفو او زبور کښ ښما
٤٥ په حق کښ ليکلي شوي دي پوره شي ٤٥ نو دَ دوي ذهن ئې پرانستل
٤٦ دي دپارَ چه په صحيفو باندِ پوه شي ٤٦ او ده ورته وويل چه داسي
ليکلي شوي دي او داسي بايده دي چه مسيح زغم وکړي او په دريمه
٤٧ ورځ له مړو نه پورته شي ٤٧ او چه دَ ده په نوم سره له اورشليم نه په
٤٨ ټولو قومونو کښ وعظ دَ توبي او دَ عفوي دَ ګناهونو وکړي شي ٤٨ او
٤٩ تاسي په دي کارونو شاهدان يئ ٤٩ او ګوره زه وعده دَ خپل پلار
تاسي ته دراستوم مګر تاسي په ښهر کښ تر هغه پوري کښينئ څو
چه له پاسَ قدرت دَرواغوندولي نه شي
٥٠ ٥٠ او دوي ئې بهر تر بيتِ عينئ پوري بوتلل او لاسونه خپل
٥١ ئې پورته کړل او دوي ته ئې برکت ورکړ ٥١ او داسي وشول چه دوي ته
٥٢ ئې برکت ورکاوه له دوي نه جدا شه او آسمان ته وخيژولي شه ٥٢ او
دوي ده ته سجده وکړه او په ډيري خوښئ سره اورشليم ته وجاروتل
٥٣ ٥٣ او مدام به ئې په هيکل کښ مُبارکي دَ الله کوله ❊

# اِنجِيل دَ مُقَدَّسْ يُوحَنَّا

## اوّل باب

۱ آ په ابتدا کښ کلمه وه او هغه کلمه اَلله ځخه وه او هغه کلمه اَلله وَه
۲ ۳ ۲ دغه په ابتدا کښ اَلله ځخه وَه ۳ ټول ځيزونه په دي سره وشول او بي
۴ له هغي هيڅ شي له هغو نه چه شوي دِي و نه شه ۴ په هغي کښ ژوندون
۵ وه او هغه ژوندون نُور دَ انسان وُه ۵ او نُور په تياري کښ ځليده او تياري
۶ هغه و نه پيژاند ۶ يَو سړي له جانب دَ اَلله نه واستولي شه چه نُوم ئي يُوحَنَّا
۷ وُه ۷ هغه دَ شاهدَئِ دَپارَ راغي تاچه په نُور شاهِدِي وِلي تاچه ټول دَده
۸ په واسطي ايمان راوړِي ۸ دي هغه نُور نه وُه بلکه راغي چه په نُور شاهِدِي
۹ ۱۰ وِلي ۹ ربښتني نُور چه هر سړي نُورانِي کوِي په دُنيا کښ راتلوني وه ۱۰ هغه
په دُنيا کښ وه او دُنيا دَده په واسطه پيدا شوه او دُنيا هغه و نه پيژانده
۱۱ ۱۲ ۱۱ خپلو خپلوان ته راغي او خپلوانو دي قبول نه کړ ۱۲ ولي هرچا چه قبول
کړ هغو ته ئي اِختيار ورکړ چه دَ اَلله ځامن شِي يعني هغوي چه دَده
۱۳ په نُوم ايمان راوړِي ۱۳ چه نه له وِينو نه له خواهش دَ جُسّي او نه له خواهش
۱۴ دَ سړِي بلکه له اَلله نه پيدا شول ۱۴ او کلمه جِسم شوه او ځمونږ په مينځ
کښ ميشته شوه (او مونږ دَ هغه جلال وليد په شان دَ جلال دَ يَواځِي
۱۵ پيدا شوِي له پلاره) ډک له فضلَ او له ربښتيا نه ۱۵ يُوحَنَّا په هغه
شاهِدِي ورکړه او په نارو ئي ويل دا هغه دي چه دَ هغه په حق کښ مِ وويل
هغه چه پس له ما نه راځِي تر ما وړمبي شه ځکه چه له ما نه وړمبي وه
۱۶ ۱۷ ۱۶ ځکه چه دَده له ډکوالي نه مونږ ټولو بيا موندل او فضل په فضل ۱۷ ځکه
چه توريت په وسيله دَ موسیٰ ورکړي شه ليکن فضل او ربښتيا په وسيله
۱۸ دَ يسوع مسيح وشول ۱۸ اَلله هيچري چا ايدلي نه دي هغه ابنِ وحيد
چه دَ پلار په غيږ کښ دَي هغه ئي ظاهر کړ

۱۹ ۱۹ او دا دَه شاهِدِي دَ يُوحَنّا هر کله چه دَ يهُوديانو کوهينان او لاويان
ئې له اورشليمَ ورواستول تاچه له ده نه پوښتنه وکړي چه ته څوک يې۔
۲۰ ۲۰ او ده اقرار وکړ او منکر نه شه بلکه اقرار ئې وکړ چه زه مسيح نه يم۔
۲۱ ۲۱ او هغو پوښتنه تړ وکړه نو ته څه ؟ ته اِلياه يې څه ؟ نو وئې ويل نه
۲۲ يم ۲۲ نو ته هغه نبي يې څه ؟ نو ځواب ئې ورکړ نه بيا هغوي وويل چه نو
ته څوک يې تاچه هغوته چه موږ ئې رالېږلي يُو ځواب ورکړو ته دَ ځان په
۲۳ حق کښ څه وايي ۲۳ وئې ويل زه آواز دَ ناري وهُونکي په بيابان کښ يم
۲۴ لار دَ خداوندَ سمه کړئ لکه چه اَشعِيا نبي وويل ۲۴ او آستولي شوي
۲۵ له فَريسيانو وُو ۲۵ نو له ده نه ئې پوښتنه وکړه او ورته ئې وويل چه که ته
۲۶ هغه مسيح او اِلياه او هغه نبي نه يې نو ولې بپتسما ورکوي ۲۶ يُوحَنّا په
ځواب کښ ورته وويل زه په اوبو بپتسما ورکوم ليکن ستاسو په مينځ
۲۷ کښ يَو سړي ولاړ دَي چه تاسو ئې نه پېژنئ ۲۷ هغه چه په ما پسي راځي زه
۲۸ لايق دَ هغه نه يم چه تسمې دَ څپلۍ ئې پرانزم ۲۸ او دا خبري په بيتِ عينا
پوري خوا دَ اردَن چه يُوحَنّا هلته بپتسما ورکوله وشوي
۲۹ ۲۹ په صبا ئې وليد چه يسوع دَ ده په لوري راځه او وئې ويل گوره
۳۰ هغه برّه دَ الله چه دَ جهان گناه وړي ۳۰ دا هغه دَي چه دَ ده په حق
کښ مِ وويل چه پس له ما نه يَو سړي راځي چه له ما نه وړاندې شوي
۳۱ دي ځکه چه تر ما وړاندِ وه ۳۱ او ما دي و نه پېژاند ليکن تاچه اسرائيلو
۳۲ ته ظاهر شِي دي دَپاره زه راغلم بپتسما مِ په اوبو ورکوله ۳۲ او يُوحَنّا
شاهدِي ورکړه وئې ويل چه ما رُوح ليدلي دَي چه دَ کوترې په شان دَ
۳۳ آسمانَ راکوزيده او په ده ميشته شه ۳۳ او ما دي و نه پېژاند ليکن هغه
چاچه زه ئې راستولم چه په اوبو بپتسما ورکړم هم هغه راته وويل په هغه
څوک چه رُوح راکوزيدونکي او پرِ باندِ اوسيدونکي ووينې هم هغه دي چه په
۳۴ رُوح اَلقُدُس به بپتسما ورکوي ۳۴ او ما وليد او شاهدِي مِ ورکره
چه دا اِبنُ الله دَي

۳۵ په صبا بيا يُوحَنّا او دوه ذَده له شاګردانونه ولاړ وُو ۳۶ او يسوع ۳۵ ۳۶
ئي ګوزيد ونکي وليد و ئي ويل ګوريئ برّه دَ اَلله ۳۷ او هغو دوو شاګردانو ذَده ۳۷
خبره واوريده او په يسوع پسي شول ۳۸ او يسوع وګرزيده او دوي ئي ۳۸
وليدل چه ورپسي راځي ورته و ئي ويل چه څه لټوئ هغو ورته وويل
اي ربيّ [چه ترجمه ئي داده] اي اُستاذه ته چرته اوسيږي ۳۹ ده ورته وويل ۳۹
راشئ او وګورئ دوي ورغله او و ئي ليد چه چرته اوسيده او هغه ورځ
ورځخه پاتي شول او هغه قريب لسم ساعت وه ۴۰ يو له هغو دووکسونه ۴۰
چه دَ يُوحَنّا خبره ئي واوريده او ورپسي شول اندرياس وروږ دَ شَمعُوْن
پَطرُس وه ۴۱ اوّل ئي خپل وروږ شَمعُوْن بياموند او ورته ئي وويل چه ۴۱
مونږ مسيح چه ترجمه ئي کرِشتُس ده موندلي دي ۴۲ هغه ئي يسوع ته ۴۲
بوت يسوع ورته وکتل و ئي ويل ته شَمعُوْن زوي دَ يُوناه يي ته به کِيفا
وبللي شي چه ترجمه ئي پَطرُس ده

۴۳ په صبا ئي وغوښت چه جَلِيل ته ووزي او فَيلبوُس ئي بياموند ۴۳
او يسوع ورته وويل چه په ما پسي شه ۴۴ او فَيلبوُس دَ بَيتِ صَيدا دَ ۴۴
اَندرياس او دَ پَطرُس له ښهر وُه ۴۵ فَيلبوُس نتَنائيل بياموند او ورته ئي ۴۵
وويل چه هغه څوک چه مُوسىٰ په توريت کښ او انبياؤ ليکلي وه مونږ
وموند يسوع زوي دَ يوسف هغه چه دَ ناصِرَت دي ۴۶ نتَنائيل ورته وويل ۴۶
چه ښه شي له ناصِرَت نه کيدي شي څه ؟ فيلبوُس ورته وويل راشه
وګوره ۴۷ يسوع نتَنائيل وليد چه وله راځي او دَ هغه په حق کښ وايي ۴۷
ګوره په رښتيا اسرائيلي دي په ده کښ ټګي نشته ۴۸ نتَنائيل ورته ۴۸
وايي چه ته م له کومه پيژني يسوع ځواب ورکه و ئي ويل پخوا له هغه چه ته
فيلبوس راوبللي هغه وقت چه ته دَ اِنځَر دَ وني لاندِ وي ما وليدي -
۴۹ نتَنائيل ځواب ورکړ اي ربيّ ته يي ابنُ الله ته يي بادشاه دَ اسرائيل- ۴۹
۵۰ يسوع ځواب ورکړ و ئي ويل له دي سبب چه ما درته ووِ چه ته مِ دَ ۵۰
اَنځير تروني لاندِ وليدي ايمان دِ راوړ څه ؟ ته به له دغو نه لوي ځيزونه

۵۱ وويني ۵۱ پس ده ورته ووې چه زه رښتيا رښتيا درته وايم چه آسمان
به پرانتلې او فرښتي دَ الله به اِبنِ آدم ختل او كوزيدل كوني وويني +

## دويم باب

۱ ۱ او په دريمه ورځ په قانا دَ جليل كښ واده وُه او دَ يسوع مور هلته
۲ ۳ وه ۲ او يسوع او شاگردان ئي هم هغه واده ته بللي شوي وُو ۳ او چه
۴ شراب تمام شول مور دَ يسوع ورته وويل چه شراب نه لري ۴ نو يسوع
هغي ته وويل اي ښځي څما او ستا څه تراوس پوري څما وقت
۵ لا نه دي رسيدلي ۵ دَ ده مور خدمتكارانو ته وائي هر څه چه تاسو ته
۶ وايي كوئ ۶ او هوري شپږ مَنگي دَ كاڼي ايښي وُو په موافق دَ طهارت دَ يهُوديانو
۷ چه هر يوه دَ دوه دريو منو ځاي لاره ۷ يسوع هغوته وايي چه منگي له اوبو
۸ نه ډك كړئ او هغه ئي ترخولي ډك كړل ۸ نو بيا ئي ورته وايي چه اوس ئي
۹ راوكاږئ او دَ مجلس مشر ته ئي ور وړئ نو ورئي وړل ۹ او چه دَ مجلس
مشر هغه اوبه چه شراب شوي وي وڅښلي او پوه نه شه چه له كومه دي
[مگر خدمتكاران چه اوبه ئي يستلي وي پوه شول] نو مشر دَ مجلس په واده
۱۰ كوني آواز وكړ ۱۰ او ورته وئي ويل چه هر سړي دِ اوّل ښه شراب ږدي او چه
خلقو ښه سره وڅښلي وي نو هغه ناكاره ليكن تا تراوس پوري ښه شراب
۱۱ ساتلي دي ۱۱ دا ابتدا دَ ښو دَ يسوع په قانا دَ جليل كښ وكړه او خپل جلال
ئي ښكاره كړ او دَ ده شاگردانو ايمان پرِ راوړ

۱۲ ۱۲ پس له دي نه هغه كفرنحوم ته ښكته شه هغه او مور ئي او
ورونړه ئي او شاگردان ئي او په هغه ځاي كښ ډيري ورځي پاتي نه شول

۱۳ ۱۴ ۱۳ او فصح دَ يهوديانو نژدي وه او يسوع اورشليم ته وخوت ۱۴ او هغه
كسان چه غوايان او گډوري او كوتري ئي خرڅولي او صرافان ئي په هيكل كښ
۱۵ ناست وموندل ۱۵ بيا ئي له رسئ نه كوړه جوړه كړه ټول ئي له هيكل
نه وشړل هم هغه گډوري او غوايان او دَ صرافانو روپئ توي كړي او تختونه
۱۶ ئي واړول ۱۶ او كوترو خرڅونكو ته ئي وويل چه دا څيزونه له دي ځايَ لري كړئ

ځما دَ پلار کور دَ سوداګرِي کور مه جوړوئِي ۱۷ دَ ده شاګردانو ته په یاد شول ۱۷
هغه چه لیکلي وُو چه زه ستا دَ کور غیرت وخوړلم ۱۸ بیا یهُودیانو په ځواب ۱۸
کښ ورته وویل ته کومه نخښه را ښکاره کوي چه دا کارونه کوي ۱۹ یسوع په ۱۹
ځواب کښ ورته وویل چه دا مَقدِس وران کړِئ او زه به ئې په دري ورځې
کښ پورته کړم ۲۰ نو یهُودیانو وویل چه دا مَقدِس په شپږ څلویښتو کالو کښ ۲۰
جوړیده او ته به ئې په دري ورځو کښ پورته کړي څه ؟ ۲۱ لیکن ده په حق ۲۱
دَ مَقدِس دَ صُورَت خپل کښ خبري کولي ۲۲ بیا چه له مړیو نه پورته شه ۲۲
شاګردانو ته ئې په یاد شول چه ده داسي ورته ویلي وُو نو په صَحِیفه ئې
ایمان راوړ او په هغه خبره چه یسوع ورته ویلي وه

۲۳ او هر کله چه دَ فَصَح په اختر کښ په اورشلیم کښ وه ډیرو دَ ۲۳
په نوم ایمان راوړ هر کله چه ئې ولیدي هغه نښي چه ده وکړي ۲۴ لیکن ۲۴
یسوع دَ خپل ځان اعتبار په هغوي ونه کړ ځکه چه ټول ئې پیژندل ۲۵ او ۲۵
ځکه چه مُحتاج دَ دي نه وه چه څوک دَ انسان په حق کښ شاهدِي ولي چه
پخپله پوهیده چه په انسان کښ څه وُو ۞

## دریم باب

۱ یو کس دَ فَرِیسیانو وه چه نوم ئې نِقودِیمُس وه رَئیس دَ یهُودیانو ۲ هم ۱ ۲
هغه په شپې کښ یسوع ته ورغي او وئې ویل اي اُستاذه مونږ پوهیږو
چه ته له الله نه اُستاذ راغلي يې ځکه چه هیڅوک نه توانیږي چه دا نښي
لکه چه ته ئې کوي وئې کړي يې له دي چه الله ورسره وِي ۳ یسوع په ۳
ځواب کښ ورته وویل چه زه رښتیا رښتیا درته وایم تر هغه پوري چه
څوک له پاسَ پیدا نه شي نه توانیږي چه بادشاهِي دَ الله ووینِي –
۴ نِقودِیمُس ورته وائِي چه انسان زوړ شي بیا څرنګ پیدا کیدي شي ۴
داکیدي شي چه سردوباره دَ مور په ګیډه ننوتي او پیدا شي څه ؟ –
۵ یسوع ځواب ورکړ زه رښتیا رښتیا درته وایم ترهغه پوري چه څوک له ۵
اوبو او له رُوح نه پیدا نه شي دَ الله په بادشاهِئ کښ نه شي ننوتلي ۶ هغه ۶

چه له جُثي نه پيدا شوي دي جُسّه ده او هغه چه له رُوح نه پيدا شوي دي
٧ رُوح دَي ٧ تعجب مه كوه چه تا ته مِ وويل چه بانده دِي چه له پاسَ پيدا
٨ شئِ ٨ باد هرچرته چه غوارِي الوزي او ته ئِ آواز اوري ليكن نه پوهيږِي چه
له كومه راځي او چرته ځي دغه سي دِي هرڅوك چه له رُوح نه پيدا شوِي دِي
٩ ٩ نِقُوذِيمُس په ځواب كښ ورته وويل چه دا خبري څرنگ كيدي شِي
١٠ ١٠ يسوع په ځواب كښ ورته وويل ته دَ اسرائيلو اُستاذ بي او په دي خبرونه پوهيږِې
١١ څه ؟ ١١ زه رښتيا رښتيا درته وايم څه چه پري خبريُو هغَه وايُو او څه چه
١٢ مونږ ليدلي دِي شاهدِي لو او تاسي ځمونږ شاهدِي نه قبلوَئِ ١٢ ما چه تاسي
ته دِ زمكي ځيزونه وويل او تاسي ايمان نه راوړَئِ نو كه زه تاسو ته دَآسمان
١٣ ځيزونه ووايم څرنگ به ايمان راوړَئِ ١٣ هيڅوك آسمان ته نه دِي ختلي
مگر هغه څوك چه له آسمانَ راكوز شــــه يعني اِبنِ آدم چه په آسمان
١٤ كښ دَي ١٤ او لكه چه مُوسىٰ په بيابان كښ مار پورته كړ دغه سي بانده دِي
١٥ چه اِبنِ آدم پورته كړَي شِي ١٥ تاچه هرڅوك چه په دهٔ ايمان راوړِي ابدِي
ژوندون ولرِي

١٦ ١٦ ځكه چه اَللّٰه له جهان سره داسي مِينه وكړه چه اِبنِ وَحِيد خپل
ئِ وركړ تاچه هرڅوك چه په ده ايمان راوړِي هلاک نه شِي بلكه ابدِي
١٧ ژوندون ولرِي ١٧ ځكه چه اَللّٰه خپل زوي جهان ته نه دي رااستولي چه
په جهان باندِ حكم وكړِي بلكه چه جهان دَده په واسطي خلاص شِي -
١٨ ١٨ هغه څوك چه په ده ايمان راوړِي په هغه باندِ حكم نه كيږِي او هغه
څوك چه ايمان نه راوړِي په هغه باندِله اوسَ حكم شوي دي ځكه چه په
١٩ نُوم دَ اِبنِ وَحِيد دَ اَللّٰه ئِ ايمان راوړِي نه دي ١٩ او حكم دا دَي چه نُور په
جهان كښ راغلي دَي او خلقو له نُوره په تياري زياته مِينه وكړه ولي چه
٢٠ كارونه دَدوي بد وُو ٢٠ ځكه چه هرڅوك چه خراب كارونه كوِي له نُور سره
٢١ كِينه لرِي او نُورته نه راځِي هسي نه چه كارونه ئِ ښكاره شِي ٢١ ليكن هغه
څوك چه رښتيا كوِي نُور ته راځِي تاچه كارونه دَده ظاهر شِي چه په اَللّٰه

کړي شوي دي
٢٢ ٢٢ پس له دي یسوع او شاګردان ئې دَ یَهُودِیي زمکي ته راغلل او
٢٣ له هغو سره هوري تیکاو شه او بپتسما ئي ورکوله ٢٣ او یُوحنّا هم په
عَینُون کښ نژدي دَ سَالیم بپتسما ورکوله ځکه چه په هغه ځاي کښ اوبه
٢٤ ډیري وي او خلق به راتلل او بپتسما به ئي اخسته ٢٤ ولي چه یوحنّا لا تر
٢٥ اوسه په قیدخاني کښ اچولي شوي نه وه ٢٥ بیا دَ یُوحنّا دَ شاګردانو نه له یَوه
٢٦ یَهُودِي سره دَ طَهَارَتْ په باب مباحِثه وشوه ٢٦ او یُوحنّا له راغلل او ورته
وئي ویل اي اُستاذه هغه څوک چه له تا سره پوري غاړه دَ اَرْدَنْ وه چه تا
په هغه شاهِدي ورکړه ګوره هغه بپتسما ورکوي او ټول هغه له راځي -
٢٧ ٢٧ یُوحنّا په ځواب کښ وویل چه انسان هیڅ آخستي نه شي څو چه
٢٨ له آسمانَ ورکړي شوي نه وِي ٢٨ تاسي په خپله په ما شاهِدِي ئِي چه
٢٩ ما وویل چه زه مسیح نه یم بلکه ذ هغه دَ وړاندِ رااستولي شوي یم ٢٩ هغه
چه ناوي لري زوم دَي لیکن دوست دَ زوم هغه دَي چه
ولاړ دَي او اوري ئي نو دَ زوم دَ آواز په خوښي خوشحالي کوي پس
٣٠ دا خوښي ځما کمال ته ورسیده ٣٠ بائده دِي چه هغه زیات شي او زه
کم شم
٣١ ٣١ هغه څوک چه له پاسَ راځي له ټولو پاس دَي او هغه څوک چه
له زمکي دَي دَ زمکي دَي او له زمکي خبري کوِي او هغه څوک چه له آسمانَ راځي
٣٢ له ټولو پاس دَي ٣٢ او په هرڅه چه ئي لیدلي او اوریدلي دِي شاهِدي
٣٣ ورکوِي او هیڅوک دَده شاهِدي نه قبلوِي ٣٣ هغه چاچه دَده شاهِدي
٣٤ قبوله کړي دَه مُهر ئي ولګاوه چه اَللّٰه ربښتِنيَ دَي ٣٤ ځکه چه هغه څوک چه
اَللّٰه راستولي دَي دَ اَللّٰه خبري وائِي چه اَللّٰه رُوح په پیمانه سره نه ورکوِي -
٣٥ ٣٦ ٣٥ پلار له زوي سره مِینه کوِي او هرڅه ئي دَده په لاس ورکړِي دِي ٣٦ هغه
څوک چه په زوي ایمان راوړي ابدِي ژوندون لرِي او هغه څوک چه په زوي
باور نه کوِي ژوندون به و نه وِیني بلکه قهرِ دَ اَللّٰه پري اوسي +

# څلورم باب

۱ آ او چه خداوند وپوهیده چه فَرِیسِیّانو اوریدلي وُو چه یسوع له یُوحَنّا
۲ نه زیات شاګردان نیسي او بپتسما ورکوي ۲ (سره له دي چه یسوع په خپله
۳ بپتسما نه ورکوله بلکه دَده شاګردانو) ۳ نو یَهُودیه ئي پرینښوه او بیا جَلِیل
۴ ۵ ته لاړ ۴ او ده لره ضرور وُه چه په سامِریه تیر شي ۵ نو یَو ښهر دَ سامِري ته
چه سُوخار نوم ئي وه رائي نژدي دَ هغي زمکي چه یَعقُوب خپل زوي یُوسف
۶ ته ورکړي وَه ۶ او کوهي دَ یَعقُوب په هغه ځاي کښ وه نو یسوع چه له منزله
۷ ستړي شوي وه په کوهي باندِ هسي کښیناست او قریب شپږم ساعت وه ۷ یَوه
ښځه له سامِري نه دَ اوبو وکښلو دَپارَ راغله یسوع ورته وویل چه اوبه راباندِ
۸ ۹ وڅکوه ۸ ځکه چه شاګردان ئي دَ خوراک پیرودلو دَپارَ ښهر ته تللي وُو ۹ نو
سامِري ښځي ورته ووِ ته چه یَهُودِي یې څرنګ له ما نه دَ څکلو اوبه غواړي
۱۰ چه زه سامِري ښځه یم ولي چه یَهُودِیان له سامِریانو سره معامله نه کوي ۱۰ یسوع
په ځواب کښ ورته وویل که تا بخښنه دَ اَللّٰه پیژندلي او چه څوک دي چه
تا ته وایِي چه اوبه راباندِ وڅکوه نو تا به ورنه غوښتي وي او هغه به تا ته
۱۱ ژوندَئ اوبه درکړي وي ۱۱ ښځي ورته وویل اي خاونده ته بوکه نه لري
۱۲ او کوهي ژور دي نو ته هغه اوبه دَ ژوندانه له کومه لري ۱۲ ته څمونږ له پلاره
یَعقُوبَ لوي یې څه ؟ چه مونږ ته ئي دا کوهي راکړ او ده پخپله او دَده زامنو
۱۳ او دَده څارویو له هغه نه وڅښلي ۱۳ یسوع په ځواب کښ ورته وویل هر
۱۴ څوک چه له دي اوبه نه وڅښي بیا به تږي شي ۱۴ مګر هغه څوک چه له هغه
اوبو نه چه زه به ئي ورکوم وڅښي هیڅري ترابده به تږي نه شي مګر هغه اوبه چه زه به ئي
ورکوم په هغه کښ به دَ اوبو چینه شي چه ترابدِي ژوندانه پوري به پورته
۱۵ خوټکیږي ۱۵ ښځي ورته وویل اي خاونده دغه اوبه ما له راکړه تاچه تږي
۱۶ نه شم او نه دَلي اوبو وکښلوله راشم ۱۶ یسوع ورته ووِ لاړه شه خپل میړه
۱۷ راوبوله او دلته راشه ۱۷ ښځي په ځواب کښ ووِ چه میړه نه لرم یسوع

ورته وويل ښه دِ وويل چه ميړه نه لرم ١٨ ولي چه پنځه مېړونه دِ وُواوه ١٨
هغه چه لري ئې ستا ميړه نه دي دا دِ رښتيا ويلي دِي ١٩ ښځي ورته وويل اي ١٩
خاونده وِينم چه ته نبِي يې ٢٠ څمونږ پلرونو په دي غره کښ سجدي کولي او ٢٠
تاسي وايئِ چه په اورشليم کښ هغه ځاي شته دي چه په کښ سجدي کول
بايده دِي ٢١ يسوع ورته وويل چه اي ښځي په ما ايمان راوړه ځکه چه ساعت ٢١
راځي چه نه به په دي غره کښ او نه به په اورشليم کښ پلار ته سجدي کوئِ
٢٢ تاسي هغه ته چه نه ئې پيژنئِ سجدي کوئِ مونږ هغه څه ته چه پيژنو ٢٢
ئې سجدي کوو ځکه چه نجات له يهُوديانو دي ٢٣ ليکن ساعت راځي بلکه ٢٣
اوس دي چه رښتني سجدي کونکي به پلار ته په رُوح او په رښتيا سجدي
وکړي ولي چه پلار داسي سجدي کونکي خپل لټوي ٢٤ اَللّٰه رُوح دي او هغه ٢٤
څوک چه ده ته سجدي کوي بايده دِي چه په رُوح او په رښتيا سـره
سجدي وکړي ٢٥ ښځي ورته وويل پوهيږم چه مسيح راځي (چه ويلي شي کرِشتُس) او ٢٥
هر کله چه هغه راشي مونږ به په هرڅيز خبر کړي ٢٦ يسوع ورته وويل ٢٦
زه چه له تا سره خبري کوم هغه يم
٢٧ او په دي کښ شاګردان ئې راغلل او تعجب ئې کاوه چه له ښځي ٢٧
سره خبري کوي ليکن هيچا ونه ويل چه څه غواړي يا ولي ورسره خبري کوي
٢٨ بيا هغي ښځي خپل مَنګي پرېښود او ښهر ته لاړه او سړيو ته ئې وويل ٢٨
٢٩ راشئِ او داسي سړي وګورئِ چه هرڅه چه ما کړي دُوُ ما ته ئې وويل ٢٩
ګنړه دغه مسيح نه دي څه ؟ ٣٠ نو له ښهرَ راووتل او ده ته راغلل ٣١ او ٣٠ ٣١
په دي مينځ کښ شاګردانو پوښتنه تر وکړه وئې ويل اي اُستاذه وخوره
٣٢ او ده ورته وويل چه زه څه خواړه لرم چه وخورم او تاسوئې نه پيژنئِ - ٣٢
٣٣ بيا شاګردانو يَو له بله وويل ګنړه چا به ده ته خواړه راوړلي وِي ٣٤ يسوع ٣٣ ٣٤
ور ته وويل خواړه ځما دادِي چه رضا دَ رالېږونکي خپل وکړم او کار ئې
تر سره کړم ٣٥ ګنړه تاسي نه وايئِ چه اوس څلور مياشتي کيږي بيالوَ ٣٥
راځي ګوره تاسي ته وايم چه خپلي سترګي پورته کړئِ او پټي وګورئِ

٣٦ چه اوس دَ لَو دَپارَ سپین شوي دِي ٣٦ لوګړِي مزدورِي اخلِي او دَ ابدِي
٣٧ ژوند دَپارَحاصل ټولوِي تاچه کرونکِي او لوګړِي سره خوشحالي وکړِي ٣٧ په
٣٨ دي کښ دا متل رښتني دَي چه یو کرِي او بل ریبِي ٣٨ تاسي مِ واستولَيِ
چه هغه څه چه خوارِي مو پرِ کړي نه ده ولې ریبَئِ خوارِي نورو کړي ده
او تاسي دَ هغو په خوارِیِ کښ داخل شوئِ
٣٩ ٣٩ او له دغه ښهرَ ډیرو سامِریانو په ده ایمان راوړ دَ هغي ښځي
دَ خبري په سبَبَ چه شاهدِي ئي ورکړه چه هر څه چه مِ کړِي وُو راته ئي
۴٠ وویل ۴٠ نو چه سامِریان وله راغله پوښتنه ئي ځني وکړه چه دوي څخه پاتي
۴١ شي نو هلته دوه ورځي پاتي شه ۴١ او نورو ډیرو خلقو دَ ده دَ کلام په
۴٢ سبب ایمان راوړ ۴٢ او هغي ښځي ته ئي وویل چه اوس مونږ ایمان راوړو
نه ستا دَ خبري په سبَبَ ځکه چه مونږ په خپله اوریدلي دي او پوه
شوي يُو چه په رښتیا دغه خلاصونکي دَ جهان دي
۴٣ ۴۴ ۴٣ او پس له دوو ورځو له هغه ځاي نه جَلِیل ته لاړ ۴۴ ځکه
چه یسوع په خپله شاهدِي ورکړه چه هیڅ نبِي په خپل وطن کښ عِزّت نه
۴٥ لرِي ۴٥ بیا چه جَلِیل ته راغي جَلِیلیانو دِي قبول کړ ځکه چه ئي لیدلي وُو
هر څه چه ده په اورشلیم کښ په اَخترَ کښ کړِي وُو ځکه چه دوي هم
په اَختَرَ راغلِي وُو
۴٦ ۴٦ بیا هغه قانا دَ جَلِیل ته هغه ځاي ته چه اوبه ئي شراب کړِي وُو
بیرته ورغي یَو بادشاهِي اَمِیر وه چه زوي ئي په کَفَرْنَحُوم کښ رنځور وه-
۴٧ ۴٧ چه هغه واوریدل چه یسوع له یَهُوْدِیه نه جَلِیل له راغلي دي وله ورغي
او ترِ خواست ئي وکړ چه کوز شي او دَ ده زوي ته شفا ورکړِي ځکه چه په
۴٨ ځنکندن وه ۴٨ یسوع ورته ووِ چه که تاسي نښي او عجائبات ونه وینِئ
۴٩ نو ایمان نه راوَړئِ ۴٩ بادشاهِي اَمِیر ورته وویل چه اي خداونده مخکښ
٥٠ له هغه نه چه ملک ځما ومرِي کوز شه ٥٠ یسوع ورته وویل ورځه زوي
دِ ژوندي دي هغه سړي په هغه کلام چه یسوع ورته وایه ایمان راوړ او

٥١ لاړ شه ۵۱ او دي لا په کوزيدلو کښ وه چه مريونه ئي مخي ته راغلل و ئي
٥٢ ويل چه زوي دِ ژوندي دَي ۵۲ بيا ئي له هغو نه پوښتنه وکړه چه په کوم
ساعت کښ ئي صحت بيامُوند هغو ورته وويل چه پرُون په اوم ساعت تبي
٥٣ پرِيښود ۵۳ نو پلار ئي پوه شه چه هغه ساعت وه چه يسوع ورته ويلي
وُو چه زوي دِ ژوندي دي او هغه په خپله او ټول ټبر ئي ايمان راوړ
٥٤ ۵۴ او دا دويمه معجزه وه چه يسوع وکړه هر کله چه له يَهُوديي نه جَلِيل
نه راغي ❊

# پنځم باب

١ ۱ پس له دي خبرو يَواختر دَ يَهُودِيانو وُه او يسوع اورشليم ته وخوت
٢ ۲ او په اورشليم کښ دَ گډورِي دروازي څنګه يَو حوض دي چه په
٣ عبراني کښ ور ته بَيتِ حَسدا وائِي چه پنځه دالانَ لرِي ۳ په هغو کښ يَو
٥ لوي ټولي دَ رنځورانُ دَ رَندو دَ گُډو دَ شلانو پروت وه ۵ او په هغه ځاي
٦ کښ يَو سړي وه چه له اته ديرشو کالو نه په خپل رنځ کښ پروت وه ۶ چه
يسوع هغه سړي پروت وليد او پوه شه چه ډيره مده شوي ده چه په دي حال
٧ وه ور ته ئي وويل غواړي چه جوړ شي ۷ رنځور ځواب ورکړ اي خداونده زه
څوک نه لرم هر وقت چه دا اوبه وخوزولي شِي ما په حوض کښ واچوِي او څو
٨ پوري چه زه په خپله ورشم بل څوک له ما نه وړاندِ ورښکته شِي ۸ يسوع
٩ ورته وويل پاځه او خپل کټ پورته کړه او وګرزه ۹ او په هغه ساعت
هغه سړي جوړ شه او خپل کټ ئي پورته کړ او وګرزيده
١٠ ۱۰ او په هغه ورځ سَبَت وه له دي سبب يَهُوديانو هغه ته چه جوړ
١١ شوي وه وويل چه دا سَبَت دي تا ته روا نه دِي چه خپل کټ پورته کړي ۱۱ هغه
ځواب ورکړ و ئي ويل چه هغه چا چه زه ئي جوړ کړم هم هغه راته ويل چه خپل
١٢ کټ پورته کړه او وګرزه ۱۲ نو پوښتنه ئي تري وکړه هغه سړي څوک دي چه درته ئي ويلي
١٣ دِي چه خپل کټ پورته کړه او وګرزه ۱۳ هغه سړي چه جوړ شوي وه نه ئي پيژاند
١٤ چه څوک دي ځکه چه يسوع غائب شه چه په هغه ځاي ټولي وه ۱۴ پس له دي يسوع

هغه په هیکل کښې بیاوموند او ورته وئې ویل وګوره ته جوړ شوي یې بیا خطا
مه کوه هسې نه وِې چه بدتر شئ درباندِ راشي ۱۵ هغه سړي لاړ او یهودیانو ۱۵
ته ئې خبر ورکړ هغه چه زه ئې جوړ کړم یسوع دَی ۱۶ او دَدي دپاره یهودیانو ۱۶
یسوع آزاروه ځکه چه داکارونه ئې دَ سَبَّت په ورځ کول ۱۷ لیکن یسوع هغو ۱۷
ته وویل چه پلار مې تر اوسه پورې کار کوي او زه هم کار کوم ۱۸ نو دي دپاره یهودیانو ۱۸
ډیر طلب وکړ چه دَي ووژني ځکه چه ده نه یوازې سَبَّت ماتاوه بلکه اَللّه ئې
هم خپل پلار باله او ځان ئې له اَللّه سره برابر کاوه

۱۹ نو یسوع په ځواب کښې ورته وویل چه زه تاسو ته رښتیا رښتیا ۱۹
وایم چه زوي نه توانیږي چه له ځانَ څه وکړي مګر هغه څه چه وګوري چه
پلار ئې کوي او هر څه چه دي کوي زوي هم هغه کوي ۲۰ ځکه چه پلار په زوي ۲۰
مِینه کوي او هر څه چه دي ئې په خپله کوي هغه ته ئې ښکاره کوي او تر دي
لوي کارونه به ورته ښکاره کوي چه تاسي حیران شئ ۲۱ ځکه لکه چه پلار مړي ۲۱
پورته کوي او ژوندي کوي دغه شان زوي هم هر څوک چه غواړي ژوندي کوي
۲۲ ولي چه پلار دَ هیچا عدالت نه کوي بلکه ټول عدالت ئې زوي ته ورکړي دي ۲۲
۲۳ تاچه ټول دَ زوي عِزّت وکا لکه چه دَ پلار عِزّت کوي هغه څوک چه دَ زوي ۲۳
عِزّت نه کوي دَ هغه پلار عِزّت چه دي ئې رااستولي دَي نه کوي ۲۴ زه تاسو ته رښتیا ۲۴
رښتیا وایم هغه څوک چه زما خبره اوري او په هغه چاچه زه ئې رااَستولي
یم ایمان راوړي هغه له ابدي ژوندون دَي او په عدالت کښې به نه راشي
بلکه له مرګ نه ژوندانه ته تیر شوي دَي ۲۵ زه تاسي ته رښتیا رښتیا وایم ۲۵
چه ساعت راځي بلکه اوس دَي چه مړي به دَ اِبْنُ اللّه آواز واوري او اوریدونکي
به ژوندي شي ۲۶ ځکه لکه چه پلار په خپل ځان ژوندون لري زوي ته ئې ۲۶
هم ورکړي دَي چه دي هم په خپل ځان کښې ژوندون ولري ۲۷ او اختیار ئې ۲۷
ورکړي دَي چه عدالت هم وکړي ځکه چه اِبنِ آدم دَي ۲۸ له دي نه تعجب مه ۲۸
کوئ ځکه چه ساعت راځي چه هغه ټول چه په قبرونو کښې دي آواز به ئې
واوري ۲۹ او بهر ته به راووزي هغه چه نیکي ئې کړي وِي دَ ژوندانه دَقیامت ۲۹

دَ پارَ او هغه چه بدِي ئي کړي وِي دَ عدالت دَ قيامت دَ پارَ ۳۰ زه نه توانيږم چه ۳۰
له خانه څه وکړم لکه چه اورم عدالت کوم او خما عدالت رښتني دي چه زه
خپله رضا نه غواړم بلکه رضا دَ هغه چه زه ئي رالېږلي يم ۳۱ که زه دَ ۳۱
ځان په حق کښې شاهدِي ورکړم نو شاهدِي مِ رښتني نه دَه ۳۲ بل يو شته ۳۲
چه خما په حق کښې شاهدِي ورکوِي او پوهيږم چه هغه شاهدِي چه خما
په حق کښې شاهدِي کوِي رښتني ده ۳۳ تاسو يُوحَنّا ته سړي واستول او ده ۳۳
په رښتيا شاهدِي ورکړِي دَه ۳۴ مګر زه دَ انسان شاهدِي نه قبلوم ليکن ۳۴
دا خبري وايم چه تاسي خلاص شئ ۳۵ دي هغه ډيوه وه چه بليده او ځليده ۳۵
او تاسي وغوښته چه تر يَوي مُدې پوري دَ هغه په نُور ښادِي وکړئ -
۳۶ ليکن زه شـــاهدِي لرم چه دَ يُوحَنّا له شاهدِي نه لويه ده ولي چه دا ۳۶
کارونه چه پلار ما ته راکړِي دِي چه پوره ئي کړم يعني دا کارونه چه زه ئي کوم
خما په حق شاهدِي ورکوِي چه زه پلار رالېږلي يم ۳۷ او پلار چه زه ئي رالېږلي يم ۳۷
خما په حق ئي شاهدِي ورکړِي ده تاسو دَ هغه آواز هيڅري اوريدلي نه دي
او شکل مو ئي ليدلي نه دي ۳۸ او تاسي دَ هغه کلام په ځان کښې اوسيدلي نه ۳۸
لرئ ځکه چه په هغه چا چه ده رالېږلي دَي ايمان نه راوړئ ۳۹ صَحِيفي ولټوئ ۳۹
ولي چه تاسو ګمان لرئ چه په هغـــو کښې ابدِي ژوندون لرئ او دا هغه
دِي چه خما په حق کښې شاهدِي ورکوِي ۴۰ او تاسو نه غواړئ چه ما ته راشئ ۴۰
چه ژوندون بيا مومئ ۴۱ زه له سړي نه جلال نه اَخلم ۴۲ ليکن تاسي پيژنم ۴۱ ۴۲
چه مِينه دَ اَلله په ځان کښې نه لرئ ۴۳ زه په نُوم دَ خپل پلار راغلي يم او ۴۳
تاسو مِ نه قبلوئ که بل يَو په خپل نُوم راشي نو تاسو به ئي قبول کړئ ۴۴ تاسي ۴۴
څرنګ ايمان راوړئ چه يَو له بلَ جلال اَخلي او هغه جلال چه دَ واحِد اَلله دَي
نه ئي لټوئ ۴۵ ګمان مه کوئ چه زه به له تاسو نه پلار ته شکايت وکړم هغه ۴۵
شته دي چه په تاسي شکايت کونکي دَي يعني مُوسىٰ چه تاسي اميد پرِ کوئ -
۴۶ ځکه چه که تاسي په مُوسىٰ ايمان راوړي وي نو په ما به مو ايمان راوړي وَ ۴۶
چه هغه خما په حق کښې ليکلي دِي ۴۷ ليکن چه دَ هغه په ليکلو ايمان نه ۴۷

راوړيږ نوځما په خبرو به څرنګ ایمان راوړئ +

# شپږم باب

١ ١ پس له دي يسوع دَجَلِيل له درياب نه چه طَبَرِياس دي پوري ووت
٢ ٢ او لوي ټولي ورپسي شه ځکه چه هغه نخښي چه ده په رنځورانو کولي
٣ وئي ليدلي ٣ او يسوع په غره وخوت او هلته له خپلو شاګردانو سره کښيناست
٤ ٥ ٤ او فَصَحَ اَختر دَ يَهُوديانو نژدي وه ٥ او چه يسوع سترګي پورته کړي وئ کتل
چه لوي ټولي وله راځي نو فَيلبوس ته ئي ووِ چه مونږ به ډوډئ له کومه
٦ وبيرو چه وئي خوري ٦ ليکن ده داخبره دَ هغه دَآزمايښت دَپارَ ووِيله ځکه
٧ چه پخپله پوهيده چه څه به کړي ٧ فَيلبوس وله ځواب ورکړ چه دَ دوو سوو
٨ ديِنارو ډوډئ دَ دوي دَپارَ بس نه ده تاچه هريو لږه واخلي ٨ يو له شاګردانو
٩ دَده يعني اَندرياس ورور دَ شَمعُون پطرس ورته ووِيل ٩ يو هلک دلي دي
چه پنځه ډوډئ دَ اوربشو او دوه واړه کبان لري ليکن دا په هومره کښ څه
١٠ دي ١٠ يسوع ووِيل سړي کښينوئ او په هغه ځاي کښ ډيروابښه وُو او
١١ خلق په شمار قريب پنځه زره سړي کښيناستل ١١ بيا يسوع ډوډئ واخستي
او شکر ئي وکړ په شغو سړو چه ناست وُو و
١٢ ويشلي او دغه شان له کبانو هم چه ئي څه غوښتل ١٢ او چه ماړه شول
نو شاګردانو خپلو ته ئي ووِيل چه زياتي شوي ټکړي ټولي کړئ تاچه هيڅ څيز
١٣ ورک نه شي ١٣ نو ټولي ئي کړي اوله ټکړو دَ پنځو ډوډو دَ اوربشينو نه چه له خوړونکو
١٤ زياتي شوي وي دولس ټوکري ئي ډکي کړلي ١٤ بيا دا نښه چه ئي ښکاره کړه
خلقو چه وليده وئي ووِيل چه په رښتيا دا هغه نبي دَي چه دُنيا له راتلونکي
وه
١٥ ١٥ او چه يسوع پوه شه چه دوي به راشي اودي به ونيسي چه بادشاه
ئي کړي نو بيا يوازي غره ته لاړ
١٦ ١٧ ١٦ او چه ماښام شه شاګردان ئي دَ درياب غاړي ته راښکته شول ١٧ او
په بيړئ وختل پوري دَ درياب کَفَرنَحُوم ته تلل او اوس تياره شوي وه

۱۸ او یسوع دوي ته لا تراوسَ نه وه راغلي ۱۸ او دَ باد په سبَبْ درياب په
۱۹ موجونو شه ۱۹ او چه دوي په قدر دَ پنځه وِيشتو يا دیرشو غشي پرتاب چي
ووهلي نو يسوع ئي په درياب باندِ تلونکي او بيړئِ ته نژدي شوي وليد نو
۲۰ ۲۱ ووېرېدل ۲۰ ليکن ده ورته وويل زه يم مه وېرېږئ ۲۱ نو وئي غوښته چه دي
بيړئ ته وخېژوي او دستي هغه ځاي ته چه ورتلونکي وه ورسيدله
۲۲ ۲۲ په بله ورځ هغه ټولي چه له درياب پوري ولاړ وُو وئي ليد چه هلته بله
وړوکي بيړئ نشته بي له هغي يَوي نه او چه يسوع له خپلو شاګردانو سره په بيړئ
۲۳ کښ ننه نه وت بلکه شاګردان ئي يَوازي لاړل ۲۳ (ليکن وړوکي بيړئ له طِبرياس
هغه ځاي ته نژدي چه په برکت دَ شکر ئي دَ خداوند ډوډئ خوړلي وه رسيدلي
۲۴ وي) ۲۴ بيا چه ټولي وليد چه نه يسوع او نه شاګردان ئي په هغه ځاي کښ دِي
۲۵ دوي هم په وړوکو بيړو وختل او په لټولو دَ يسوع کَفَرنحُومْ ته راغلل ۲۵ هرکله
چه ئي له درياب پوري غاړه بيا موند ورته وئي ويل اي اُستاذَ ته کله دي
۲۶ ځاي له راغلي يي ۲۶ يسوع په ځواب کښ ورته وِ چه زه تاسو ته رښتيا رښتيا
وايم چه تاسو ما لټوئ نه دي دَپارَ چه تاسو نخښي وليدلي بلکه چه تاسو ډوډئ
۲۷ وخوړي او ماړه شوئ ۲۷ دَ فاني خوراک دَپارَ خواري مه کوئ بلکه دَ هغه خوراک
دَپارَ چه ترابدِ ژوندانه پوري پاتي کيږي چه اِبنِ آدم به ئي تاسو ته درکړي
۲۸ ځکه چه پلار يعني اَللهُ په هغه باندِ مُهر لګولي دي ۲۸ نو هغو ورته وويل
۲۹ څه وکړو چه عملونه دَ اَلله په ځاي راوړو ۲۹ يسوع په ځواب کښ ورته وِ کار
۳۰ دَ اَلله دادي چه په هغه چا چه ده رالَېږلي دي ايمان راوړئ ۳۰ بيا هغوي ورته
وويل نو ته څه نښه کوي چه مونږ ئي ووينو او په تا ايمان راوړو ته څه کار
۳۱ کوي ۳۱ ځمونږ پلرونو په بيابان کښ مَن وخوړ لکه چه ليکلي شوي دِي چه له
۳۲ آسمانَ ئي ډوډئ خوړلو ته ورکړه ۳۲ نو يسوع ورته وويل زه تاسو ته رښتيا
رښتيا وايم مُوسیٰ تاسو ته هغه ډوډئ چه له آسمانه ده درنه کړه مګر پلارِم
۳۳ هغه رښتني ډوډئ له آسمانه تاسو ته درکوي ۳۳ ځکه چه دَ اَلله ډوډئ هغه
۳۴ ده چه له آسمانه ښکته راځي او جهان ته ژوندون بخښي ۳۴ بيا ئي ورته

٣٤ وویل ای خداوند دا ډوډئ مدام موږ ته راکوه ٣٥ یسوع ورته وویل زه یم
هغه ډوډئ د ژوندانه هغه څوک چه ما له راشي وږي به نه شي او هغه څوک
٣٦ چه په ما ایمان راوړي هیچري به تږي نه شي ٣٦ لیکن تاسو ته مې وویل چه زه مو ولیدلم
٣٧ او ایمان مو رانه وړ ٣٧ هرڅه چه پلار ما ته راکړي ما څخه به راشي او هغه څوک
٣٨ چه ما له راشي زه به ئې هیچري ونه شړم ٣٨ ځکه چه زه له آسمانه ښکته راغلي
یم نه دي د پاره چه خپله رضا وکړم بلکه رضا د هغه چا چه زه ئې رالیږلی یم
٣٩ ٣٩ او رضا د هغه چه زه ئې رالیږلي یم دا ده چه هرڅه چه ما له ئې راکړي
٤٠ زه هیڅ څیز د هغه ورک نه کړم بلکه په ورستي ورځ به ئې پاڅوم ٤٠ او ځما د
پلار رضا دا ده چه هرڅوک چه زوي ویني او ایمان پرې راوړي ابدي ژوندون
به بیاموي او زه به ئې په ورستي ورځ پاڅوم
٤١ ٤١ بیا یهودیانو د ده په حق کښ ګنګوسې وکړې ځکه چه ویلي وو زه هغه
٤٢ ډوډئ یم چه له آسمانه راښکته شوي یم ٤٢ او وئې ویل ګنړه دا یسوع زوي
د یوسف نه دي څه؟ چه پلار او مور ئې موږ پیژنو نو اوس دي څرنګ وائي
٤٣ چه زه له آسمانه راښکته شوي یم ٤٣ بیا یسوع په ځواب کښ ورته وویل چه
٤٤ تاسو په خپل مینځ کښ ګنګوسې مه کوئ ٤٤ هیڅوک ما له نه شي راتلی بې له دې
چه هغه پلار چه زه ئې رالیږلي یم را ئې کاږي او زه به ئې په ورستي ورځ
٤٥ پاڅوم ٤٥ د نبیانو په صحیفو کښ لیکلي دي چه ټول به له الله نه تعلیم
آخستونکي شي بیا هر چا چه له پلاره اوریدلي او زده کړي دي ما له راځي
٤٦ ٤٦ دا نه دي چه چا به پلار لیدلي وي مګر هغه چا چه له الله دي هم
٤٧ هغه پلار لیدلي دی ٤٧ زه تاسو ته رښتیا رښتیا وایم چه هغه څوک
٤٨ ٤٩ چه ایمان راوړي ابدي ژوندون لري ٤٨ زه یم هغه ډوډئ د ژوندانه ٤٩ ستاسو
٥٠ پلرونو په بیابان کښ مَنْ وخوړ او مړه شول ٥٠ هغه ډوډئ چه له آسمانه
٥١ ښکته راشي دا ده چه څوک ئې وخوري او نه مري ٥١ زه یم هغه ژوندي ډوډئ
چه له آسمانه ښکته راغلي یم که څوک له دې ډوډئ نه وخوري تر ابده پورې
به ژوندي وي او هغه ډوډئ چه زه به ئې ورکړم ځما جسه ده د جهان د

ژوندانه دپارَ
٥٢ بيا يَهُوديانو يَو له بله جگړه وکړه او وئي ويل چه دا سړي څنگه خپله ٥٢
جُسّــه راکــولي شِــي چه وئي خورو ٥٣ نو يسوع ورته وويل زه ٥٣
تاسو ته رښتيا رښتيا وايِم چه که تاسي جُسّه دَابنِ آدم ونه خوړئ او وينه
ني ونه څکئ په خپل ځان کښ ژوندون نه لرئ ٥٤ هغه څوک چه ځما جُسّه ٥٤
وخوري او وينه مِ وڅښي ابدي ژوندون لري او زه به ئي په ورستنئ ورځي
پاڅوم ٥٥ ځکه چه ځما جُسّه حقيقي خوراک دَي او ځما وينې حقيقي څښاک دَي ٥٥
٥٦ هغه څوک چه ځما جُسّه خوري او ځما وِينه څښي په ما کښ اوسي او زه په ٥٦
هغه کښ ٥٧ لکه چه زه ژوندي پلار را واستولم او زه دَ پلار په وسيله ژوندي ٥٧
يم هغه څوک هم چه ما وخوري ځما په وسيله به ژوندي وي ٥٨ دا هغه ٥٨
ډوډئ ده چه له آسمانه ښکته راغلي دَه نه لکه چه پــلرونو وخوړه
او مړه شول هغه څوک چه دا ډوډئ وخوري ترابده به ژوندي وي ٥٩ دا ٥٩
خبري په عبادتخانې کښ هغه وقت چه په کَفَرنَحُوم کښ ئي تعليم کاوه وويلي
٦٠ بيا ډيرو دَده له شاگردانو چه واوريدل وئي ويل دا کلام سخت دي ٦٠
څوک ئي اوريدي شِي ٦١ او چه يسوع په ځان پوه شه چه شاگردان ئي په ٦١
دي خبري گَنگوسَي کوِي نو ورته وئي ويل چه گنړه دا تاسي ته تيندک
درکوِي څه؟ ٦٢ که تاسي اِبنِ آدم چرته چه پخوا وه ختونکي ووينئ نو څه ؟ ٦٢
٦٣ رُوح هغه دي چه ژوندي کوِي جُسّه هيڅ فائده نه رسوِي دا خبري چه ٦٣
زه تاسي ته وايِم رُوح دَي او ژوندون دَي ٦٤ ليکن ځيني له تاسي دِي ٦٤
چه ايمان نه راوړِي ځکه چه يسوع له ابتدا نه پوه شوي وه چه څوک وُو
چه ايمانِ را نه وړ او څوک وه چه دي به وسپاړي ٦٥ او وئي ويل چه له ٦٥
دي سبَبَ مِ تاسي ته وويل چه هيڅوک ما له راتلي نه شِي بي له هغه چه
له پلاره ورکړِي شِي
٦٦ په دي بانډِ دَده. له شاگردانو ډيــر ترِ په بيرته وجاروتل او بيا ٦٦
ورسره نه گرزيدل ٦٧ نو يسوع دوولسو ته وويل گنړه تاسي هم غواړئ چه ٦٧

٦٨ لاړشئ‌څه ٦٨ نو شمعون پِطرَس په ځواب کښ ووِ اي خداونده مونږ به چا
٦٩ له لاړ شُو خبرې دَ ابدي ژوندانه تا څخه دِي ٦٩ او مونږ ايمان راوړلي دَي
٧٠ او پوهيږو چه ته قدّوس دَ الله يي ٧٠ يسوع وله ځواب ورکړ چه کنړه ما تاسي
٧١ دولس تنه غوره کړي نه يئ څه؟ او يو له تاسي نه شَيطان دي ٧١ په حق دَ
يهُودا زوي دَ شمعون اِسقرِيوت يئ ووِ څکه چه دي هغه وه چه دَ هغه
سپارونکي وو چه يو له دولسو نه ۞

## اووم باب

١ ١ پس له دي يسوع په جَلِيل کښ گرزيده څکه چه نه يئ غوښت چه په
٢ يهُودي کښ وگرزي څکه چه يهُوديانو لټاوه چه دي ووژني ٢ نو اَختَر
٣ دَ يهُوديانو اَختَر دَ خيمو نژدي وُه ٣ بيا دَده ورونړو ورته وويل له دي
ځاي نه روان شه او يهُودي ته لاړ شه تاچه هغه کارونه چه ته يئ کوي
٤ ستا شاگردان يئ هم ووِيني ٤ څکه چه هيڅوک نشته چه په پټه کار کوي او
په خپله غواړي چه ښکاره ږِ شم که ته دا کارونه کوي نو خپل ځان جهان ته
٥ ٦ ښکاره کړه ٥ څکه چه دَده ورونړو هم ايمان پرِ راوړي نه وه ٦ بيا يسوع هغو
ته ووِيل چه ځما وقت لا رسيدلي نه دي ليکن ستاسي وقت تل حاضر دَي
٧ ٧ جهان له تاسي سره کينه کولي نه شِي ليکن له ما سره کينه کوِي څکه چه
٨ زه دَدوي په حق کښ شاهدِي ورکوم چه کارونه يئ بد دِي ٨ تاسو دي اَختَر
ته وخيژئ زه لا تر اوسَ دي اَختَر ته نه خيژم څکه چه ځما وقت لا نه دي
٩ پوره شوي ٩ دا خبري يئ هغو ته ووِيلي او په جَلِيل کښ پاتي شه
١٠ ١٠ او چه ورونړه يئ اَختَر ته ختلي وُو نو دي هم وخوت نه په ښکاره
١١ بلکه لکه په پټه ١١ بيا يهُوديانو په اختر کښ دي لټاوه او وئي ويل هغه
١٢ چرته دَي ١٢ او گنگوسي دَده په خلقو کښ ډيره وه ځينو ويل چه هغه نيک
١٣ دَي او نورو ويل نه بلکه خلق غُلوِي ١٣ ليکن دَ يهُوديانو له ويري هيچا دَده
په حق کښ په ښکاره خبري نه کولي
١٤ ١٤ بيا دَ اُختَر په مينځ کښ يسوع هيکل ته وخوت او تعليم يئ ورکاوه

۱۵ او یهودیان حیران شول او ویل ئې چه دا سړي څنګ په صحیفو پوهیږي سره د دې چه ۱۵
لوستي ئې نه دي ۱۶ یسوع په ځواب کښې ورته وویل چه دا تعلیم ځما نه دي ۱۶
بلکه ځما د استونکي دي ۱۷ که څوک غواړي چه د هغه رضا وکاندې هغه به ۱۷
په دې تعلیم پوه شي چه له الله دي یا که زه ئې له ځانه وایم ۱۸ هغه ۱۸
څوک چه له ځانه وائي خپل جلال لټوي لیکن هغه چه د هغه جلال لټوي
چه دي ئې رااستولي دي هغه رښتیا دي او په هغه کښې ناراستي نشته
کنږه موسیٰ تاسو ته توریت نه دي درکړي څه؟ او هیڅوک له تاسو نه په توریت ۱۹
عمل نه کوي ولې ما د وژلو د پاره لټوئ ۲۰ ټولي په ځواب کښې ووې چه ته دیو ۲۰
لري څوک تا د وژلو د پاره لټوي ۲۱ یسوع په ځواب کښې ورته ووې چه ما یو کار ۲۱
کړي دي او تاسو ټول پرې تعجب کوئ ۲۲ موسیٰ تاسو ته په سنتولو حکم کړي دي ۲۲
(هسې نه چه له موسیٰ دي بلکه له پلرونو ) او تاسي د سبت په ورځ
سړي سنتوئ ۲۳ که سړي د سبت په ورځ سنتیږي چه توریت د موسیٰ مات ۲۳
نه شي نو تاسي ما ته ولې قهریږئ څکه چه ما یو سړي د سبت په ورځ بالکل
جوړ کړي دي ۲۴ په ظاهر عدالت مه کوئ بلکه په صدق سره عدالت وکړئ ۲۴
۲۵ نو ځینو له اورشلیمیانو نه وویل کنږه دا هغه نه دي چه له وژلو ۲۵
د پاره ئې لټوي څه ؟ ۲۶ او ګوره چه په ښکاره وائي او هیڅ ورته نه وائي کنږه ۲۶
مشران پرې په رښتیا پوهیږي چه دي هغه مسیح دي ۲۷ لیکن دي پیژنو ۲۷
چه له کومه دي او هغه مسیح چه راشي هیڅوک به نه پوهیږي چه د کوم ځاي
دي ۲۸ بیا یسوع په هیکل کښې ناري کړې او په تعلیم سره ئې وویل چه تاسي ۲۸
ما هم پیژنئ او پیژنئ چه له کوم یم او زه له خپل ځانه نه یم راغلي لیکن چه زه
ئې رااستولي یم رښتني دي چه تاسي ئې نه پیژنئ ۲۹ زه ئې پیژنم څکه چه زه ۲۹
له ده یم او ده زه رااستولي یم ۳۰ بیا ئې لټاوه چه دي ونیسي او هیچا لاس پرې ۳۰
وا نه چاوه څکه چه ساعت ئې لا تر اوسه راغلي نه وه ۳۱ او ډیرو له ټولي ۳۱
نه ایمان پرې راوړ او وئې ویل مسیح چه راشي نو له دغونه زیاتي نښې چه
ده کړي دي و به ئې کړي څه ؟ ۳۲ فریسیانو واوریدل چه ټولي د ده په باب ۳۲

داسي ګنګوسي کړي نو سردار کوهنانو او فرِيسيانو ملازمان واستول چه
۳۲ دي ونيسي ۳۳ بيا يسوع ورته وويل زه لږه موده نور له تاسو سره يم بيا
۳۴ هغه له ځم چه زه ئي راستولي يم ۳۴ تاسي به ما ولټوئِ او نه به مِ مومئِ
۳۵ او چرته چه زه يم تاسي نه شئ راتلي ۳۵ بيا يَهُوديانو يو له بله وويل چه
دي به چرته لاړ شي چه موږ به ئي نه مومو ګنړه په زِدَ خوارو شويو دَ يُونانيانو
۳۶ بـه لاړ شي او يُونانيانو له به تعليم ورکړي ۳۶ دا څه خبره ده چه ئي وويله
چه تاسي به مِ ولټوئِ او نه به مِ مومئِ او چرته چه زه يم تاسي نه شئ
راتلي

۳۷ ۳۷ او په وروستئِ ورځ چه لويه ورځ دَ اَختر وَه يسوع ودريده او ناري
۳۸ ئي کړي او وئي ويل که څوک تږي وي ما له دِ راشي او ودِ څښي ۳۸ هغه
څوک چه په ما ايمان راوړي لکه چه صَحيفي راوړي دي سِيندونه دَ ژوندانه دَ
۳۹ اوبو به دَده له ګيډي نه وبهيږي ۳۹ دا خبره ئي دَ روح په باب وويله چه هغوئ
چه په ده ئي ايمان راوړي دَي بيا به ئي مومي وَلي چه رُوحُ اَلقُدُس لا تراوسَ ورکړي
۴۰ شوي نه وه ځکه چه يسوع لا تراوسَ جلال ته رسيدلي نه وه ۴۰ ځينو له بولِيو نه
۴۱ چه دَده خبري ئي واوريدې وئي ويل چه په رښتيا سره هغه نبي دَي ۴۱ او نورو
وويل چه دي هغه مسيح دي او ځينو وويل چه ګنړه مسيح له جَليل نه راځي
۴۲ څه ؟ ۴۲ ګنړه صَحيفي نه دِي راوړي چه له نسلَ دَ داؤدَ او دَ بيتِ لَحَم له هغه
۴۳ کلِي نه چه داؤد په کښ وُه مسيح راځي ۴۳ بيا دَ هغه په سببَ په بولِي کښ
۴۴ اختلاف راغي ۴۴ ځينو له دَغونه وغوښتل چه دي ونيسي ليکن هيچا لاسونه
پري وا نه چول

۴۵ ۴۵ بيا ملازمانُ دَ سردار کوهنانو او فَرِيسيانو ته راغلل او هغو
۴۶ ورته ووِ چه ولي مو رانه وست ۴۶ ملازمانو په ځواب کښ وويل چه هيچري
۴۷ انسان داسي نه دِي ويلي ۴۷ بيا فرِيسيانو هغو ته په ځواب کښ وويل چه ګنړه
۴۸ تاسي هم غُلوِلي شوِيِ يَئِ څه ؟ ۴۸ ګنړه چا له مَشَرانو يا له فَرِيسيانو پري ايمان
۴۹ راوړي دي څه ؟ ۴۹ ليکن دا بولِي چه په توريت نه پوهيږي مَلعُونان دِي -

دَ نِقُودِيمُس (چه په خپاده ته راغلي وه او يَو له هغو نه وه) هغه ته ئې وويل ٥٠
٥١ کَنزه خمونږ توريت په سړي بانږ حکم کوي بي له هغه نه چه اوّل ور نه ٥١
واوري او پوه شي چه څه کوي ٥٢ ورته ئې په ځواب کښ وويل چه کَنزه ته ٥٢
هم دَ جَلِيل يې څه ؟ تفحص وکړه او وګوره چه هيڅ نبي له جَلِيلَ نه پورته
کيږي

(٥٣ او دا ټول هر يَو خپل خپل کور ته لاړل

# اتم باب

١ او يِسوع دَ زيتون غره ته لاړ ٢ او صبا بيا هيکل ته ورغي او ټول خلق ورته ١ ٢
راغلل بيا کښيناست او هغو ته ئې تعليم ورکه ٣ او کاتبانو او فَرِيسيانو يَوه ٣
ښځه چه په زنا نيولي شوي وه ده ته ئې راوسته او په مينځ کښ ئې ودروله
٤ او ورته ئې وويل چه اي اُستاذه دا ښځه په وقت دَ فعل دَ زنا نيولي شوي ٤
ده ٥ په توريت کښ مُوسیٰ مونږ ته حکم راکړي دي چه داسي دِ سنګسار ٥
کړي شي نو ته دَ هغي په باب څه وايي ٦ او هغو دَ اَزمايښت دَپارَ دا خبره ٦
وويله تاچه په دد بانږ ځاي دَ نالش بيا مومي ليکن يسوع ټيټ شه او په
ګوته ئې په زمکه ليکل اوچه له ده نه په پوښتنو پوښتنو شول تم شه او ٧
هغو ته ئې وويل چه هغه څوک چه له تاسو بې ګناه دي اوّل دِ ئې په کاڼړي ٨
وولي او بيا ټيټ شه او په ګوتي سرِ ئې په زمکه ليکل ٩ هغو دا خبري اوريدې ٩
له مشرانو نه شروع تر آخره پوري يَو يَو ټول بهر ووتل او يسوع يَوازي پاتي شه
او ښځه په مينځ کښ وه ١٠ او يسوع تم شه او ورته ئې وويل اي ښځي هغوي ١٠
چرته دي کَنزه هيچا در بانږ حکم ونه کړ څه ؟ ١١ و ئې ويل اي خداونده هيچا ١١
بيا يسوع و ويــل چه زه هم در بانږ حکم نه کوم لاړه شه له اوس نه بيا
ګناه مه کوه)

١٢ نو بيا يسوع ورسره خبري وکړي او و ئې ويل زه نُور دَ جهان يم هغه څوک ١٢

چه په ما پسې ځي په تیارۍ کښې به نه ګرزي بلکه دَ ژوندانه نُور به لرِي·
۱۳ ۱۳ بیا فَرِیسیانو ورته وویل چه ته په ځان شاهِدي کوې ستا شاهِدي
۱۴ رښتیني نه دَه ۱۴ یسوع په ځواب کښې ورته وویل که زه دَ ځان په حق کښې
شاهِدي ورکوم نو ځما شاهِدي رښتیني دَه ځکه چه پوهېږم چه له کومَ راغلي یم او
۱۵ چرته ځم او تاسې نه پوهېږئ چه له کومه راغلي یم او چرته ځم ۱۵ تاسې موافق
۱۶ دَ جسم عدالت کوئ زه دَ هیچا عدالت نه کوم ۱۶ او که زه عدالت وکړم نو ځما
عدالت رښتینی دي ځکه چه زه یوازې نه یم بلکه زه یم او پلار مې چه زه يې
۱۷ رالېږلي یم ۱۷ او ستاسو په توریت کښې هم لیکلي دي چه دَ دوکسو
۱۸ شاهِدي رښتیني دَه ۱۸ یو زه یم چه دَ ځان په باب شاهِدي ورکوم او بل
۱۹ پلار مې چه زه يې رالېږلي یم ځما په باب شاهِدي ورکوي ۱۹ هغوی ورته وویل
پلار دې چرته دې یسوع ځواب ورکړ چه تاسې نه ما پېژنئ او نه مې پلار که
۲۰ تاسو زه پېژندلي وی نو به مو ځما پلار هم پېژند ۲۰ دا خبرې یسوع په بَیتُ المال
کښې هغه وقت چه په هیکل کښې يې تعلیم ورکاوه وکړې ووېلې او هیچا ونه نیو ځکه
چه ساعت لا نه وه راغلي
۲۱ ۲۱ نو یسوع بیا دوی ته وویل چه زه ځم او تاسو به مې ولټوئ او
په خپلو ګناهونو کښې به مړه شئ هغه ځای له چه زه ځم تاسې نه شئ راتلي
۲۲ ۲۲ بیا یهودیانو وویل ګنړه ځان به ووژني چه وائي هغه ځای ته چه زه ځم
۲۳ تاسې نه شئ راتلي ۲۳ او هغو ته يې وویل چه تاسو له ښکته يئ او زه له
۲۴ پاسَ یم تاسې له دې جهان يئ زه له دې جهان نه یم ۲۴ تاسو ته مې وویل
چه تاسو به په خپلو ګناهونو کښې مړه شئ ولې چه که تاسو ایمان رانه وړئ
۲۵ چه زه هغه یم نو په خپلو ګناهونو کښې به مړه شئ ۲۵ بیا يې ورته وویل
ته څوک يې نو یسوع ورته وویل زه هغه یم چه له ابتدا نه مې درته ویلي
۲۶ دِي ۲۶ ډېرې خبرې لرم چه ستاسو په حق ووایم او عدالت وکړم لیکن
هغه چه زه يې رالېږلي یم رښتیني دي او هغه خبرې چه ما له هغه نه اورېدلي
۲۷ دِي په جهان کښې وایم ۲۷ هغوی پوه نه شول چه دا خبرې يې دَ پلار په حق

کښې ورته ووېلې ٢٨ بیا یسوع ورته ووېل هرکله چه تاسو اِبْنِ آدم پورته کړئ ٢٨
هله به پوه شئ چه زه هغه یم او له ځانه هیڅ نه کوم بلکه لکه چه پلار
مِ تعلیم راکړي دي هغه خبري کوم ٢٩ او هغه څوک چه زه ئې رالیږلي یم له ٢٩
ما سره دي هغه زه یَوازي پرِ ایښي نه یم ځکه چه زه مدام هغه کارونه کوم
چه دَده خوښ دِي ٣٠ هغه وقت چه ده داخبري کولې ډېرو په ده ایمان راوړ ٣٠
٣١ بیا یسوع هغو یهُودیانو ته چه په ده ئې ایمان راوړي وه ووېل چه ٣١
که تاسو زما په کلام ټینګ اوسئ نو په رښتیا زما شاګردان یئ ٣٢ او په حق ٣٢
به پوه شئ او حق به تاسي آزاد کاندِ ٣٣ هغو وله ځواب ورکړ چه مونږ دَ ٣٣
اَبراهام اولاد یُو او هیچري چا سریونه کړي نه یُو ته څرنګ وائي چه آزاد به شئ -
٣٤ یسوع ورته په ځواب کښې ووېل چه زه تاسو ته رښتیا رښتیا وایم هرڅوک ٣٤
چه خطا کوي دَ خطا مریي دَي ٣٥ او مریي په کورکښې مدام نه پاتې کېږي ٣٥
زوي مدام پاتې کېږي ٣٦ نو که زوي تاسي آزاد کړي تاسي به په حقیقت ٣٦
آزاد شئ ٣٧ زه پېژنم چه تاسي دَ اَبرَاهام اولاد یئ لیکن ما دَ وژلو دَپارَ ٣٧
لټوئ ځکه چه زما کلام په ستاسو کښې ځاي نه لري ٣٨ ما هغه څه چه له ٣٨
پلاره لیدلي دِي وایم او تاسي هغه څه چه له خپله پلاره مو لیدلي دِي کوئ
٣٩ هغو په ځواب کښې ورته ووېل چه زمونږ پلار اَبرَاهام دَي یسوع ور ته ٣٩
ووېل چه که تاسو دَ ابراهام ځامن وئ نو تاسو به دَ اَبرَاهام کارونه کول
٤٠ لیکن تاسو اوس ما دَ وژلو دَپارَ لټوئ او زه هغه کَس یم چه دا ٤٠
رښتیا چه له اَللّٰه نه مِ اورېدلي دِي تاسو ته مِ ووېل اَبرَاهام داسي نه کول
٤١ تاسو دَخپل پلار کارونه کوئ هغو ورته ووېل چه مونږ له زنا پیدا ٤١
شوي نه یُو یَو پلار لرو هغه اَللّٰه دَي ٤٢ یسوع هغو ته ووېل که ستاسو ٤٢
پلار اَللّٰه وَيْ نو له ما سره به مو مینه کوله ځکه چه زه له اَللّٰه نه راوتلي
راغلي یم او هم زه په خپله راغلي نه یم بلکه هغه رالیږلي یم ٤٣ ولي ٤٣
تاسو زما په خبره نه پوهیږئ له دي سبب چه زما کلام اورېدلي نه شئ -
٤٤ تاسي له خپله اِبلیس پلارَ یئ او غواړئ چه شهوتونه دَخپل پلار وکړئ ٤٤

هغه له اوّله خوني وه او په رښتيا كښې پاتې نه شه ځكه چه رښتيا په كښې
نشته چه دروغ واېي نو له ځانه واېي ځكه چه دي دروغژن دي او دَ هغه
۴۵ ۴۶ پلار دَي ۴۵ اوچه زه رښتيا وايم نو په ما باور نه كوئ ۴۶ څوك دي له تاسو
نه چه په ما ګناه ثابته كړي كه زه رښتيا وايم نو تاسو ولي په ما ايمان
۴۷ نه راوړئ ۴۷ هغه څوك چه دَ الله دَي نو دَ الله خبري اوري له دي سببَ
۴۸ تاسي نه اورئ چه دَ الله نه يئ ۴۸ يَهُوديانو په ځواب كښې ورته وويل ګنړه
۴۹ مونږ ښه نه وايُو چه ته سامِري يي او ديو لري ۴۹ يسوع ځواب وركړ چه ديو
۵۰ نه لرم ليكن زه دَ خپل پلار عِزّت كوم او تاسي مِ بي عِزّتي كوئ ۵۰ او زه
۵۱ خپل جلال نه لټوم څوك شته چه لټوي او عدالت كوي ۵۱ زه تاسو ته رښتيا
رښتيا وايم چه كه څوك زما كلام وساتي ترابده به مرګ و نه ويني -
۵۲ ۵۲ يَهُـــوديانو ورته وويل چه اوس پوه شولو چه ته ديو لري اَبرَاهام مړ
دَي او نبيان هم او ته وايي چه كه څوك زما كلام وساتي ترابده به مرګ
۵۳ ونه څكي ۵۳ ګنړه ته زمونږ له پلاره اَبرَاهامَ لوي يي څه ؟ چه مړدَي او نبيان
۵۴ مړه دِي ته خپل ځان څه ګنړي ۵۴ يسوع ځواب وركړ كه زه ځان بزرګ كوم
نو زما بزرګي هيڅ نه دَه پلار مِ دَي چه زما بزرګي وايي چه تاسو وايئ چه هغه
۵۵ ستاسو الله دَي ۵۵ او تاسو په هغه ونه پوهيدلِئ ليكن زه ئې پيژنم او كه زه
ووايم چه نه ئې پيژنم نو ستاسو په شان به دروغژن شم ځكه چه زه ئې پيژنم
۵۶ او كلام ئې ساتم ۵۶ ستاسو پلار اَبرَاهام په دي ډيره ښادِي كوله چه ورځ
۵۷ زما ووينِي او وئې ليده او خوشحال شه ۵۷ بيا يَهُوديانو ورته وويل چه ته لا
۵۸ تر اوسَ دَ پنځوسو كالو نه يي او اَبرَاهام دِ ليدلي دَي څه ؟ ۵۸ يسوع ورته وويل
چه زه تاسو ته رښتيا رښتيا وايم چه پخوا له هغه نه چه اَبرَاهام كيده زه يم
۵۹ ۵۹ نو هغوي كاڼي پورته كړل چه ګذار پري وكاندِ ليكن يسوع ځان غايب
كړ او له هيكل نه ووت ✣

## نهم باب

۱ ۲ ۱ او چه تيريده نو يو سړي ئې وليد چه له پيدا كيدو نه ړوند وه ۲ او شاګردانو

پوښتنه تِرِ وکړه وئې ويل اي اُستاذه چا خطا کړي ده دغه سړي که مور
دَده چه ړوند پيدا شوي دي ۳ يسوعٓ ځواب ورکړ نه ده خطا کړي دي نه ۳
دَده مور او پلار ليکن چه کارونه دَ اَللّٰه په ده کښ ښکاره شِي ۴ مونږ ۴
ته ښائي چه تر هغه وقت پورې چه ورځ ده کارونه دَ هغه چا چه زه ئې
رااَستولي يم وکړو شپه راځي چه په کښ هيڅوک کار نه شي کولي ۵ تر هغه ۵
پورې چه په جهان کښ يم نُور دَجهان يم ۶ دا ئې ووئيل او په زمکه ئې وتوکل ۶
او په لاړو ئې خټه جوړه کړه او خټه ئې دَ هغه په سترګو پورې که ۷ او ورته و ۷
ئې ويل لاړ شه او ولانبه په حوض دَ سَلوام کښ چه ترجمه کړي شوي ئې اَستولَی
دَي نو لاړ او ولانبيده او بينا راغي ۸ بيا همسايګانو او هغو چه دي ئې په ځوا ۸
ړوند ليدلي وو وئې ويل چه کنړه دا هغه نه دي چه ناست به وه او سوال
به ئې کاوه ۹ څينو ووئيل چه دا هغه دي او نورو ووئيل نه مګر دَ هغه په شان ۹
دي ده ووئيل زه هغه يم ۱۰ هغو ورته ووئيل چه سترګې دِ څرنګ پرانتلي شوې ۱۰
۱۱ هغه ووئيل يَو سړي چه يسوعٓ بللي شِي خټه ئې جوړه کړه او څما په سترګو ئې ۱۱
پورې که او راته وئې ويل چه دَ سَيلوام حوض ته لاړ شه ولانبه نو زه لاړم
ولانبيدم او بينا شوم ۱۲ بيا ئې ورته ووئيل هغه چرته دي وئې ويل زه خبر ۱۲
نه يم

۱۳ بيا هغه سړي چه ړوند وَه فَرِيسيانو ته ئې راوست ۱۴ او دَ سَبَت ۱۳ ۱۴
ورځ وَه چه يسوعٓ خټه جوړه کړي وَه او سترګې دَ هغه ئې پرانتلي وې ۱۵ نو بيا ۱۵
فَرِيسيانو هم ور نه پوښتنه وکړه چه څرنګ بينا شوي ورته ئې ووئيل هغه
خټه څما په سترګو کښيښوه او ولانبيدم او بينا شوم ۱۶ نو څينو له فَرِيسيانو ۱۶
نه ووئيل چه دا سړي له اَللّٰهَ نه دي ځکه چه سَبَت نه ساتِي نورو ووئيل چه څرنګ
توانيږي چه خطاکار سړي داسې نښې وکړي بيا په هغو کښ اختلاف راغي -
۱۷ بيا هغه ړانده ته ئې هم ووئيل چه ته دَهغه په باب کښ چه ستا سترګې ۱۷
ئې پرانتلي دِي څه وائي وئې ويل نبي دَي ۱۸ نو يَهُوديانو دَده په باب کښ ايمان ۱۸
رانه وړ چه ړوند وه او بينا شه تر هغه پورې چه مور او پلار دَ هغه رانده

۱۹ ئ راوبلل ۱۹ او له هغوئ پوښتنه وکړه وئ ويل کنړه دا ستاسو هغه زوي
۲۰ دئ چه تاسو وائي چه ړوند پيدا شوي وه بيا اوس څرنګ ويني ۲۰ مور او پلار
ئ په ځواب کښ وويل موږ پيژنو چه دي ځموږ ځوي دي او چه ړوند پيدا
۲۱ شوي وه ۲۱ ليکن نه پوهيږو چه اوس څرنګ ويني او نه پوهيږو چه چا ئ
سترګي پرانتلي دي په خپله بالغ دي وئ پوښتئ په خپله به د ځان حال
۲۲ ووائي ۲۲ مور او پلار ئ داخبره ځکه وکړه چه له يهوديانو وويريدل ځکه چه
يهوديانو وړاندي يو تړ بله عهد کړي وه چه که څوک اقرار وکړي چه دي
۲۳ مسيح دي له عبادت خاني نه به خارج کړي شي ۲۳ له دي سبب مور پلار ئ
۲۴ وويل چه په خپله بالغ دي وئ پوښتئ ۲۴ نو دوباره هغه سړي چه ړوند
وه وئ باله او ورته وئ ويل چه د اَللّٰه جلال وکړه چه موږ پوهيږو چه
۲۵ دا سړي خطاکار دي ۲۵ هغه په ځواب کښ وويل که خطاکار دي که نه دي
۲۶ زه پر خبر نه يم په دي يوي زه پوهيږم چه ړوند وم اوس بينا شوم ۲۶ بيا
۲۷ ئ هم ورته وويل چه په تا ئ څه وکړل څرنګ ئ ستا سترګي پرانتلي ۲۷ ځواب
ئ ورکړ چه ما بووار درته ويلي دي او تاسو وانه وريدل ولي دوباره غواړئ
۲۸ چه واوريئ کنړه تاسو هم غواړئ چه د هغه شاګردان شئ څه ؟ ۲۸ هغوي
ورته بکنځل وکړل او وئ ويل ته د هغه شاګرد يي او موږ د مُوسیٰ شاګردان
۲۹ يو ۲۹ موږ پوهيږو چه اَللّٰه له مُوسیٰ سره خبري وکړي او نه پوهيږو چه دا
۳۰ د کوم ځاي دي ۳۰ هغه سړي به ځواب کښ ورته وويل چه په دي کښ
تعجب دئ چه تاسو نه پوهيږئ چه دي د کوم ځاي دي او ځما سترګي ئ پرانتلي
۳۱ موږ پوهيږو چه اَللّٰه د خطاکارو نه اوري ليکن که څوک اَللّٰه پرست وي
۳۲ او د هغه رضا وکړي د هغه اوري ۳۲ له ابتدا د جهانه اوريدلي شوي نه دي
۳۳ چه د ړوند پيدا شوي سترګي چا پرانتلي ۳۳ که دا سړي له اَللّٰه نه وي هيڅ
۳۴ به ئ نه شه کولي ۳۴ هغو په ځواب کښ ورته وويل چه ته بالکل په ګناه
کښ پيدا شوي يي نو ته موږ ته تعليم راکوي څه ؟ بيائ بهر وشاړه
۳۵ ۳۵ يسوع واوريدل چه هغه ئ بهر وشاړه او چه ئ بيا وموند نو

۳۵ ور ته ئې وويل كښې ته په اِبنَ‌الله باندِ ايمان راوړي څه ؟ ۳۶ په ځواب
كښ ئې ورته وويل اې خداونده هغه څوک دَي چه زه پرِ ايمان راوړم -
۳۷ ۳۷ يسوع ورته وويل تا هم ليدلي دَي او هغه چه له تا سره خبري كوِي هم
۳۸ دغه دَي ۳۸ و ئې ويل اې خداونده ايمان مِ راوړ او سجده ئې ورته وكړه
۳۹ ۳۹ يسوع ورته وويل چه زه دَ عدالت دَپارَ دي جهان ته راغلي يم تا چه
۴۰ هغوي چه نه وِيني ووِيني او هغه چه وِيني رانده شي ۴۰ او هغوي چه له
فَرِيسيانو نه وُو واوريدل او ورته ئې وويل كښې موږ هم رانده يو څه ؟
۴۱ ۴۱ يسوع ورته وويل چه كه تاسي رانده وي نو خطاكار به نه وئِ ليكن
اوس چه وايئِ چه وِينو نو ستاسو خطا باقِي دَه *

## لسم باب

۱ ۱ زه تاسو ته رښتيا رښتيا وايم چه هرڅوک چه دَ گډو شپاله ته له
دروازي نه ننه ورننوزي بلكه له بل طرف نه ورخيژي هغه غل او لوټيري دَي
۲ ۲ ليكن هغه څوک چه په دروازي ورننه وزي دَ گډو شپُون دَي ۳ دروانجي
ور ته پرانزي او گډي دَده آواز اوري او خپلي گډي پخپل نُوم بولي او بهر
۴ ته ئې بيايِي ۴ او چه خپلي گډي بهر ته وباسِي دَ هغو په مخ كښ ځِي او
۵ گډي ورپسي ځِي ځكه چه آواز ئې پيژني ۵ او په پردي پسي نه ځِي بلكه ور
۶ نه تښتِي ځكه چه آواز دَ پرديو نه پيژني ۶ يسوع دا متل هغو ته ووِ
ليكن دوي به هغه خبره پوه نه شول چه دويَ ته ئې وويل
۷ ۷ بيا يسوع دوباره ورته ووِ چه زه تاسو ته رښتيا رښتيا وايم
۸ چه زه دروازه دَ گډو يم ۸ هغه ټول كسان چه تر ما ورانِدِ راغلي وو
۹ غلهٔ او لوټيريان دِي ليكن گډو دَ هغو وانه وريدل ۹ زه دروازه يم كه څوک
زما په وسيله ننوزي نجات به بيامومِي او ننه به ځِي او بهر به راوزِي
۱۰ او څراګاه به بيامومي ۱۰ غَل نه راځِي مكر چه غلا وكړي او ووژني او برباد كړي
۱۱ زه راغلي يم تا چه هغوي ژوندون بيامومِي مكر ډيرزيات بيامومِي ۱۱ زه ښه
۱۲ شپُون يم ښه شپُون دَ گډو دَپارَ خپل ځان وركوي ۱۲ هغه چه مزدور

وِي او شپُون نه وِي او گډې ئې خپلې نه وِي چه ليوه راتلونکي ووينې نو
١٣ گډې پرېږدِي او تښتي او ليوه ئې ونيسي او خواره واره ئې کړِي ١٣ هغه
١٤ وتښتي ځکه چه مزدور دَي او دَ گډو هيڅ فکر نه کوِي ١٤ زه ښه شپُون
١٥ يم او خپل پېژنم او ځما ما پېژنِي ١٥ لکه چه ما پلار پېژني زه هم پلار
١٦ پېژنم او زه دَ گډو دَپارَ ځان ږدم ١٦ او نورې گډې زه لرم چه له دې شپاله
نه دِي بائده دِي چه هغه راولم او ځما آواز به واورِي او يَو گنډک به شي
١٧ او يَو شپُون ١٧ له دې سبَبَ پلار راسره مِينه لرِي چه زه خپل ځان ږدم تا
١٨ چه بيا ئې واخلم ١٨ هيڅوک نشته چه له ما ئې واخلي بلکه زه ئې پخپله ږدم زه
اختيار لرم چه ئې کېږدم او اختيار لرم چه بيا ئې واخلم دا حکم مِ له خپل
پلار نه موندلي دَي
١٩ ٢٠ ١٩ بيا دَ يَهُوديانو په منځ کښ په دې خبرو اختلاف وشه ٢٠ ډېروتِرِ نه
٢١ وويل چه ديو لرِي او لېوَنې دَي ولې ئې اورئ ٢١ ځينو وويل چه دا ديو لرونکي
سړِي خبرې نه دِي کنړه ديو توانيږي چه دَ ړندو سترگې پرانزِي څه ؟
٢٢ ٢٣ ٢٢ او دَ تجدِيد اَخترَ په اورشليم کښ وه او ژمي وه ٢٣ او يسوع په
٢٤ هيکل کښ دَ سليمان په دالان کښ گرزيده ٢٤ بيا يَهُوديان ترې چاپيره شول
او ورته وئې ويل چه ترڅو پورې به ځمونږ ځانونه ځورندوي که چرِته مسيح
٢٥ ئي نو مونږ ته په جَهر ووايه ٢٥ يسوع وله ځواب ورکړ چه ما تاسو ته ويلي دِي او
تاسو ايمان رانه وړ هغه کارونه چه زه په نوُم دَ پلار خپل کوم ځما په حق کښ
٢٦ شاهدِي ورکوِي ٢٦ ليکن تاسي ايمان نه راورئِ له دې سبَبَ چه تاسو ځما له
٢٧ ٢٨ گډو نه نِئِ ٢٧ ځما گډې ځما آواز اورِي او زه ئې پېژنم او راپسې راځي ٢٨ او زه
وله ابدِي ژوندون ورکوم او ترابده به هلاک نه شي او هيڅوک به ئې ځما له لاس نه
٢٩ و نه شُوکوِي ٢٩ ځما پلار چه هغه ئي ما ته راکړي دِي له ټولو لوي دَي او هيڅوک نه
٣٠ ٣١ توانيږِي چه ځما دَ پلار له لاس ئې وشُوکوِي ٣٠ زه او پلار يَو يُو ٣١ نو يَهُوديانو بيا
٣٢ کاڼي واخستل چه دې سنگسار کړِي ٣٢ يسوع وله ځواب ورکړ چه ما ډېر ښه
کارونه له خپلَ پلارَ درته ښکاره کړل دَپارَ دُ کوم يَوه له هغو نه مِ سنگسار

کويِ ۳۳ يهُوديانو وله ځواب ورکړ دَ ښه کار دَپارَ دِ نه سنګسار کوو بلکه ۳۳
دَپارَ دَ کُفر او دَدي دَپارَ چه ته انسان يي اوځان اَللّٰه جوړوي ۳۴ يسوع ۳۴
وله ځواب ورکړ کنږه ستاسو په توريت کښ ليکلي نه دِي څه ؟ چه ما وويل
تاسو خدايان يئِ ۳۵ که ئي هغو ته خدايان وويل چه کلام دَ اَللّٰه وله راغلي ۳۵
وه (او ممکن نه دِي چه صَحِيفي منسوخي کړي شي) ۳۶ کنږه تاسو دَهغه په باب کښ ۳۶
چه اَللّٰه تَقدِيس کړي او جهان ته ئي رااَستولي دي وايئ چه کُفر وايي څکه چه ما
وويل چه زه اِبنُ اللّٰه يم ۳۷ که زه کارونه دَخپل پلار نه کوم په ما ايمان مه راوړئ ۳۷
۳۸ او که زه ئي کوم اګرچه په ما ايمان نه راوړئِ په کارونو ايمان راوړئِ ۳۸
تاچه پوه شئِ او يقين وکړئِ چه پلار په ما کښ دَي او زه په پلار کښ -
۳۹ نو بيا ئي و لټاوه چه وئي نيسي ليکن دَ هغو له لاس نه ووت ۳۹
۴۰ بيا پوري دَ اَردَن هغه ځاي ته چه يُوحَنّا ورانِدِ بپتسما ورکوله ۴۰
لاړ او هلته پاتي شه ۴۱ ډير خلق وله راغلل و ئي ويل چه يُوحَنّا هيڅ ۴۱
نخښه و نه کړه ليکن هرڅه چه يُوحَنّا دَده په حق ويلي وُو رښتيا
وُو ۴۲ او ډيرو خلقو هلته په ده ايمان راوړ ÷ ۴۲

## يولسم باب

۱ او يو سړي ناجوړ وه لَعاذَرَ دَ بيتِ عِنياه چه کلي دَ مريمي او دَده دَ خور ۱
مَرتا وُه ۲ او مريمه هغه وَه چه په خداوند ئي عطر صنبلي وُو او پښي ۲
ئي په خپلو ويښتوَ پاکي کړي وي دَ هغي ورور لَعاذَرَ ناجوړ وه ۳ نو دَ هغه ۳
خوَيندو ور واستاوه او وئي ويل اي خداونده کوره هغه څوک چه ته ورسره
مِينه لري ناجوړ دَي ۴ چه يسوع واوريده وئي ويل چه دا رنځ دَ مرګ نه دَي ۴
بلکه دَ اَللّٰه دَ جلال دَپارَ دَي چه اِبنُ اللّٰه دَده په سبب جلال بيامومي ۵ او ۵
يسوع له مَرتا او دَدي له خور او له لَعاذَرَ سره مِينه لرله ۶ بيا چه وائي وريد ۶
چه ناجوړ دَي نو دوه ورځي په هغه ځايْ کښ چه وه پاتِي شه ۷ پس له ۷
دي خپلو شاګردانو ته ئي وويل چه بيا دِ يهُوديي ته لاړ شُو ۸ شاګردانو ور ۸
ته ووِ اي اُستاذه يهُوديانو اوس غوښتل چه تا سنګسار کړي او ته هغه

۹ ځاي ته بيا ځي ۹ يسوع ځواب ورکړ چه دَ ورځي دولس ساعتَ نه دِي څه ؟
که څوک په ورځي کښ ګرزِي تيندک نه خورِي ځکه چه نُور دَ جهان وينِي ـ
۱۰ ۱۰ ليکن که څوک په شپه کښ ګرزِي نو تيندک خورِي ځکه چه نُور په کښ نشته
۱۱ ۱۱ دا ئي وويل او پس ئي ورته ووِ چه څمونږ يار لَعاذَر اوده دَي ليکن زه ځم چه
۱۲ وِيښ ئي کړم ۱۲ بيا شاګردانو ورته وويل اي خداونده که اوده دَي شفا
۱۳ به بيامومِي ۱۳ يسوع دَده دَ مرګ خبره کوله او هغوي ګمان کاوه چه دَخوب
۱۴ له آرامه وايِي ۱۴ هغه وقت يسوع په جَهر وويل چه لَعاذَرُ مړ دَي ـ
۱۵ ۱۵ ستاسو له سببَ زه خوښ يم چه هلته نه وم چه تاسو ايمان راوړئ ليکن
۱۶ ځئ چه ورشُو ۱۶ بيا تُوما چه دَدُمُس بللي شه خپلو همشاګردانو ته ئي ووِ مونږ
هم ځُو چه ورسره مړه شُو
۱۷ ۱۷ بيا چه يسوع راغي نو خبر شه چه لا تر اوسَ له څَلورو ورځو نه
۱۸ په قبر کښ دَي ۱۸ او بيتِ عِنْياه اورشليم ته نژدي وه قريب دَ پنځلسو غشِي
۱۹ پرتاب ۱۹ او ډير له يهُوديانو مَرتا او مريمي ته راغلِي وُو تا چه دَ ورور په حق
۲۰ تسلِي ورکړِي ۲۰ نو مَرتا چه واوريده چه يسوع راځِي مخي له ورغله او مريمه
۲۱ په کور کښ ناسته وه ۲۱ نو مَرتا يسوع ته وويل اي خداونده که ته دلته
۲۲ وي نو ځما ورور به مړ نه وه ۲۲ ليکن اوس هم زه پوهيږم چه هر څه
۲۳ چه ته له اَللّٰه نه سوال وکړِي اَللّٰه به ئي درکا ۲۳ يسوع ورته وويل چه
۲۴ ورور به دِ پورته شِي ۲۴ مَرتا ورته وويل پوهيږم چه په قيامت به په
۲۵ ورستيِ ورځ کښ پورته شِي ۲۵ يسوع ورته ووِ زه يم قيامت او
ژوندون هغه څوک چه په ما ايمان راوړِي که مړ شِي ژوندي به شِي
۲۶ ۲۶ او هر څوک چه ژوندي دَي او په ما ايمان راوړِي تر ابده به مړ نه شِي
۲۷ په دي ايمان راوړي څه ؟ ۲۷ ورته وئي ويل هواي خداونده ايمان
مِ راوړي دَي چه ته مسيح اِبنُ‌الله يي هغه راتلونکيَ و جهان ته ـ
۲۸ ۲۸ او چه دا خبري وکړي نو لاړه او خپله خور مريمه ئي په پټه وبلله
۲۹ وِئي ويل اُستاذ راغلي دَي او تا بولي ۲۹ چه هغي واوريده زر پورته

شوه او ورغله ٣٠ (او يسوع هغه کلي ته لا نه وه رسيدلي بلکه په هغه ځاي ٣٠
کښې وه چه مرتا مخې ته ورغله) ٣١ نو هغه يهوديان چه په کور کښې ورسره ٣١
وو او تسلي ئې ورکوله چه مريمه ئې وليده چه زر پورته شوه او بهرته ووته
ورپسې شول په دې گمان چه قبر ته د ژړا دپاره ځي ٣٢ بيا چه مريمه هغه ٣٢
ځاي له ورغله چه يسوع هلته وه او وئې ليده نو په پښو ئې پريوته او
ورته وئې ويل اي خداوند که ته دلې وې نو زما ورور به مړ نه وه -
٣٣ چه يسوع هغه وليده چه ژاړي او يهوديان چه ورسره راغلي وو هم ژاړي ٣٣
په روح کښې ئې غريو وکړ او پريشان شه ٣٤ او وئې ويل چه هغه مو ٣٤
کوم ځاي ږدلې دې ورته ووېل اي خداونده راشه وئې گوره ٣٥ يسوع ٣٥
وژړل ٣٦ نو يهوديانو ووېل گوره څرنگ پرې مين وه ٣٧ څينو له هغو ووېل ٣٦ ٣٧
دا سړي چه د ړانده سترگې ئې پرانستلې اختيار ئې نه لاره چه دغه هم مړ
شوي نه وي ٣٨ بيا يسوع دوباره په روح کښې غريو وکړ او قبر ته راغي يو ٣٨
غار وه او يو کاڼړي پرې ايښې وه ٣٩ يسوع ووېل کاڼړي پورته کړئ مرتا ٣٩
خور د هغه مړي ورته ووېل اي خداونده دغه اوس سخا شوي دې
څکه چه څلورمه ورځ ئې ده ٤٠ يسوع ورته ووېل چه ما درته ونه ويل ٤٠
چه که ايمان راوړې د الله جلال به ووينې ٤١ نو کاڼړي ئې راواخلوه او يسوع ٤١
سترگې پورته کړې او وئې ويل اي پلاره ستا شکر کوم چه تا زما واوريدل
٤٢ او زه پوهيږم چه ته م مدام اورې ليکن د دې ټولې په سبب چه چاپيره ٤٢
م ولاړ دي وم ويل تا چه دوي ايمان راوړي چه زه تا رالېږلي يم ٤٣ او ٤٣
چه دا ئې ويلي وو نو په لوي آواز ئې ناري کړي چه اي لعازره بهر راشه
٤٤ او هغه چه مړ وه بهر راووت پښې او لاسونه ئې په کفن تړلي وو او ٤٤
مخ ئې په رويمال تړلې وه يسوع ورته ووېل پرا ئې نږئ او پرېږدئ ئې چه
لاړ شي

٤٥ نو ډېر يهوديانو چه مريمي ته راغلي وو او هر څه چه ئې وکړل ٤٥
وئې ليدل نو ايمان ئې پر راوړه ٤٦ مگر څيني له هغونه فريسيانو ته لاړل او په هر څه ٤٦

چه یسوع کړي وُو هغو ته ئي وويل
۴۷ ۴۷ بیا سردار کوهِنانو او فرِیسیانو جرګه جمع کړه او وئي ویل چه مونږ
۴۸ څه وکړو څکه چه دا سړي ډیري نښي ښکاره کوي ۴۸ که مونږ ئي هسي پرېږدو
نو ډیر خلق به پري ایمان راوړي او رومیان به راشي اوځمونږ ځاي اوځمونږ قوم
۴۹ به ونیسِي ۴۹ او یَو له هغو چه قِیافا وه او سردار کوهِن دَ هغه کال وه
۵۰ هغوي ته ئي وويل چه تاسي هیڅ نه پوهیږئِ ۵۰ او فکر نه کوئِ چه ځمونږ په
حق کښ سود مند دَي چه دَ اُمّت په ځاي یَو سړي مړ شِي نه چه ټول امت
۵۱ مړ شِي ۵۱ او دا خبره ئي له ځانه ونه ویله مګر دَ هغه کال سردار کوهِن شوي
۵۲ پیشین ګوئِي ئي وکړه چه یسوع به دَ قوم دَپارَ مړ شِي ۵۲ او نه یَوازي دَ هغه امت
۵۳ دَپارَ بلکه دَدي دَپارَ چه خواره شوِي ځامن دَ اَللّٰه په یَو کښ جمع کاندِ ۵۳ بیا
دوي له هغي ورځي نه مصلحت وکړ چه دي ووژنِي
۵۴ ۵۴ له دي سبَب یسوع بیا په یَهُودیانو کښ ښکاره نه ګرزیده بلکه له
هغه ځایه هغه وطن ته چه بیابان ته نژدي وه هغه ښهر له چه اَفْرایم ئي
باله لاړ شه او هلتـه ئي له خپلو شاګردانو سره تمکاؤ شه
۵۵ ۵۵ او فَصح دَ یَهُودیانو نژدي وَه او ډیر خلق له وطنه په خواله فَصح نه
۵۶ اورشلیم ته وختل تاچه ځانونه خپل پاک کاندِ ۵۶ او یسوع ئي لټاوه او په
هیکل کښ ولاړ یَو تر بله ئي ویل چه تاسي څه ګمان کوئِ چه اَخترَ له به را
۵۷ نه شِي ۵۷ نو سـرداد کوهینانو او فرِیسیانو حکم کړي وُ چه که څوک خبر شِي
چه هغه چرته دي نو ودِ ښَیِي تاچه وئي نیسِي ✣

## دولسم باب

۱ ۱ نو یسوع شپږ ورځي په خوا له فَصح نه بَیتِ عِنیاه ته چه هلته لَعاذَرْ وه
۲ او یسوع له مړیو پورته کړي وه راغي ۲ هلته ئي دَ ماښام ډوډئِ ورله وکړه او
۳ مَرتا خدمت کاوه او لَعاذَرْ یَوله کښیناستونکو ورسره وه ۳ بیا مریمي نیم سیر عطر
دَ خالصو سنبلو ګران بهاؤ واخستل او په پښو ئي دَ یسوع ومښل او پښي
۴ ئي په خپلو ویښتو پاکي کړي او کور له بوي دَ هغو عَطرو ډک شه ۴ بیا یَو

٥ دَده له شاګردانو یَهُودا اِسقَریوتِي چه سپارونکي دَده وه وئي ویل ٥ چه
ولي دا عَطَر په دري سوه دِیناره خرڅ نه شول او غرِیبانو ته ورکړي نه شول
٦ ٦ او دا ئي وویل نه چه ده دَ غرِیبانو پروا لرله بلکه چه غَل وه او همیانۍ ئي
٧ لرله هغه چه په کښې وُو وړل به ئي ٧ نو یسوع وویل پرېږده چه دا څما دَ
٨ ښخولو ورځي له وساتي ٨ څکه چه غرِیبان تل له تاسره لرئ او ما تل نه لرئ
٩ ٩ بیا لوي ګڼولي دَ یَهُودیانو پوه شول چه هلته دَي او راغلل نه یَوازي
١٠ دَ یسوع دَپارَ بلکه لَعاذَر هم چه له مړو ئي پورته کړي وه وګورِي ١٠ لیکن سردار
١١ کوهینانو مصلحت وکړ چه لَعاذَر هم مړ کړي ١١ ولي چه ډېر له یَهُودیانو دَده
په سبَب لاړل او په یسوع ئي ایمان راوړ
١٢ ١٢ په صبا لوي ګڼولي چه اَختَر له راغلي وه هر کله چه واؤ ئي وریده
١٣ چه یسوع اورشلیم ته راځي ١٣ نو دَ کَجُورو ښاخونه ئي واخستل او مخي ته ئي
بهر ووتل او ناري ئي کړي هوسنّا مبارک دي بادشاه دَ اسرائیل چه دَ
١٤ خداوند په نُوم راځي ١٤ او یسوع یَو خرکوټي بیاموند او پري سور شه لکه
١٥ چه لیکلي شوي دي ١٥ چه اي دَ صیهون لُوري مه ویرېږه ګوره چه ستا
١٦ بادشاه دَ خره په کوچي سور تا ته درځي ١٦ شاګردان ئي په دي خبرو اوّل
پوه نه شول لیکن چه یسوع جلال ته ورسیده دوي ته ور په یاد شه چه
دا خبري دَده دَپارَ لیکلي شوي وي او دا چه هغه کارونه هغوي دوي له کړي
١٧ وُو ١٧ نو هغه ګڼولي چه ورسره وه هغه وقت چه لَعاذَر ئي له قبره بللي وه
١٨ او له مړو ئي پورته کړي وه دوي شاهدي ورکړه ١٨ هم له دي سبَب ګڼولي لاړاو
١٩ ور په مخ کښې شه څکه چه واؤ ئي وریدل چه دا نښانه ئي کړي وه ١٩ نو فَرِیسیانو
یَو له بله سره ووِ چه وینئ چه هیڅ فائده مو نه کیږي ګوره جهان ورپسي
شوي دي
٢٠ ٢٠ دَ هغو په منځ کښې چه دَ اَختَر سجدي کولو له ختل ځیني یُونانیان وُو فیلبُوس
لره چه دَ بَیتِ صَیدا دَ جَلِیل وه وراندِ شول او له هغه ئي پوښتنه وکړه
٢٢ او وئي ویل اي صاحبه مونږ غواړو چه یسوع ووینو ٢٢ فَیلبُوس راغي او

۲۲ أَنْدَرِيَاس ته نې ووېل أَنْدَرِيَاس دَاغې فِيلِپُوس سره يسوع ته خبر ورکوي ۲۳ او يسوع ورته په
ځواب کښې ووېل چه وقت رسيدلې دې چه اِبْنِ آدم ته جلال ورکړې شي
۲۴ ۲۴ زه تاسو ته رښتيا رښتيا وايم چه که دانه دَ غنمو په زمکه پرې
نه وزي او مړه نه شي هم هغه يوازې پاتې کيږي ليکن که مړه شي نو ډيره
۲۵ ميوه راوړي ۲۵ هغه څوک چه له خان سره مِينه لري ورک کوي ني او هغه
څوک چه په دې جهان کښې له خان سره دُښمني لري تر ابدي ژوندانه
۲۶ پورې به ئې وساتي ۲۶ که څوک خما خدمت کړي په ما پسې دِ راشي او په
هغه ځاى کښې چه زه يم خما خدمتګار به مِ هم وِي کــه څوک خما خدمت کړي
۲۷ پلار به ئې عزّت وکړي ۲۷ اوس زه په خان پريشانه يم او زه څه وايم اې پلاره
۲۸ ما له دې ساعتَ خلاص کړه ليکن دې دَپارَ دې ساعت له راغلي يم ۲۸ اې
پلاره خپل نوم له جلال ورکړه بيا له آسمانه يَو آواز راغې چه جلال مِ ورکړې
۲۹ دې او بيا جلال به ورکړم ۲۹ بيا هغه ټولي چه ولاړ وه وائي وريدل وئې
۳۰ ويل چه آسمان وغريده نورو ووېل چه فرښتې ورسره خبري وکړې ۳۰ يسوع
په ځواب کښې ووېل چه دا آواز خما دَپارَ نه دې شوي بلکه ستاسو دَپارَ
۳۱ دې ۳۱ اوس دَ دې جهان عدالت کيږي اوس به سردار دَ دې جهان بهر
وغورزولې شي
۳۲ ۳۲ او چه زه له زمکي پورته کړې شم ټول به خپل خان ته راکاږم
۳۳ ۳۳ هغه دا خبره وکړه چه اِشارَت وکاندِ چه په څه مرګ به مړ شي ۳۴ ټولي
په ځواب کښې ورته ووِ چه له توريت مو اوريدلي دِي چه مسيح به تر ابده
پاتې شي ته څرنګه وائې چه بايده دِي چه اِبْنِ آدم پورته وخيژولې شي دا
۳۵ اِبْنِ آدم څوک دَي ۳۵ بيا يسوع ورته ووېل چه لا تر اوسَ لږه موده نوُر له
تاسو سره دَي- وګرزئِ څو پوري چه نوُر لرئِ تاچه تياره مو ونه نيسي او
۳۶ هغه څوک چه په تياري کښې ګرزي نه پوهيږي چه چرته ځي ۳۶ څو پوري چه
نوُر لرئِ په نوُر ايمان راوړئِ تاچه دَ نوُر زامن شئِ
۳۷ يسوع دا خبري وکړي بيا لاړ او له هغوي نه پټ شه ۳۷ ليکن اګر

چه ده دا هسي ډيري نښي دَ هغو دَ وړاندِ ښکاره کړي ايمان ني پرِ را نه وړ
۳۸ ۳۸ تاچه کلام دَ اَشعِياه نبي پوره شِي چه وِ ئي ويل
اي خداونده چا څمونږ په خبرهٔ ايمان راوړي دَي
او بازو دَ خداوند په چا ظاهر شوي دَي
۳۹ ۳۹ هم له دي سبَبَ نه توانيدل چه ايمان راوړِي چه اَشعِيا بيا ويلي دِي
۴۰ ۴۰ چه دَه سترَکي دَ هغو ړندي کړي دِي او زړه ئي سخت کړي دَي
هسي نه وي چه په سترِکو ووِينِي او په زړه پوه شِي
او بيرته وگرزِي
او زه هغو ته شفا ورکړم
۴۱ ۴۱ اَشعِيا داخبري وکړي څـــکه چه دَ هغه جلال ئي وليد او دَ هغه په
۴۲ حق ئي خبري وکړي ۴۲ ليکن سره دَدي ډيرو له مشَرانو په ده ايمان راوړ
ليکن دَ فَرِيسِيانو له سبَبَ ئي اقرار نه کاوه هسي نه چه له جماعتَ وِيستلي
۴۳ شِي ۴۳ څکه چه هغوي په جلال دَ انسان دَ اَللّٰه له جلاله زياتَ مِينه وکړه
۴۴ ۴۴ يسوع ناري کړي او وِ ئي ويل چه هغه څوک چه په ما ايمان راوړِي
۴۵ په ما ايمان نه راوړِي بلکه په هغه چاچه زه ئي رااَستولي يم ۴۵ او هغه
۴۶ څوک چه ما وِينِي هغه وِينِي چه زه ئي رااَستولي يم ۴۶ زه په جهان
کښِ نُور راغلي يم تاچه هر هغه څوک چه په ما ايمان راوړِي په تياري
۴۷ کښِ پاتي نه شِي ۴۷ او که څوک څما خبري واورِي او وِ ئي نه ساتِي زه عدالت
پري نه کوم څکه چه زه راغلي نه يم چه دَ جهان عدالت وکړم بلکه چه
۴۸ جهان خلاص کړم ۴۸ هغه څوک چه ما نه قبلوِي او څما خبري نه مني دَ
هغه دَپارَ عدالت کونکي شته دي هغه خبره چه ما وکړه هم هغه به په اَخِره
۴۹ ورځ دَده عدالت وکړِي ۴۹ څکه چه ما له څانه و نه ويل بلکه پلار
چه زه ئي رااَستولي يم ما لره ئي حکم راکړ چه زه څه وايم او په څه
۵۰ خبره وکړم ۵۰ او زه پوهيږم چه دَده حکم ابدي ژوندون دَي بيا هرڅه چه
زه وايم لکه چه پلار راته ويلي دِي هغسي وايم *

# دیارلسم باب

۱ ۱ او په خوا دَ فَصَحِ له اَختَرَ نه چه یسوع پوهیده چه ساعت ئې راغلي وه
چه له دې جهانه پلار ځخه لاړ شي نو له خپلو سره ئې مِینه کوله چه په جهان
۲ کښې وه تر اٰخره پورې ئې له هغو سره مِینه وکړه ۲ او چه دَ نماښام ډوډئ
ئې خوړله اِبلیس دَ یَهُودا اِسقَریوطي دَ زوي دَ شَمعُون په زړه کښې ئې دا واچاوَل
۳ چه دَی وسپارِي ۳ یسوع چه دَی پوه وه چه پلار ټول څیزونه دَده په لاس
۴ ورکړِي دِي او دا چه له اَللّٰه نه راغلي دَی او اَللّٰه له ځِي ۴ نو دَ نماښام له ډوډئ
۵ نه پورته شه او جامې ئې کیښوي او دستمال ئې واخست په ملا ئې وتاړه ۵ پس
له هغه ئې اوبه په کنډول کښې واچولې او دَ شاګردانو دَ پښو په وینځلو سر شه
۶ او په دستمال ئې پاکولې چه ئې تړلي وه ۶ نو شَمعُون پَطرَس له راغې او هغه
۷ ورته ووِ اې خداونده ته ځما پښې وینځې څه؟ ۷ یسوع په ځواب کښې ورته
ووِ څه چه زه کوم ته اوس پرې نه پوهیږې لیکن پس له دې به ئې معلوم
۸ کړې ۸ پَطرَس ورته ووِ چه ته به هیچرې ځما پښې ونه وینځې یسوع ځواب وله
۹ ورکړ چه که زه تا ونه وینځم نو ستا ما ځخه هیڅ برخه نشته ۹ شَمعُون پَطرَس
۱۰ ورته ووِ اې خداونده نه تش ځما پښې بلکه لاسُونه او سر م هم ۱۰ یسوع
ورته ووېل هغه څوک چه وینځلي شوي دي حاجت نه لري بې له وینځلو دَ پښو
۱۱ بلکه ټول پاک دَي او تاسې پاک یئِ لیکن نه ټول ۱۱ ځکه چه خپل سپارونکي
ئې پېژانده او له دې سبَبَ ئې ووېل چه ټول پاک نه یئِ
۱۲ ۱۲ او چه پښې دَ هغوئ ووینځلې او جامې ئې واخستې او بیا کښیناست
۱۳ هغوته ئې ووېل پوهیږئِ چه ما له تاسو سره څه وکړل ۱۳ تاسو م اُستاذ
۱۴ او خداوند بولئِ او ښه وایئِ ځکه چه زه هسې یم ۱۴ نو چه ما چه خداوند او
اُستاذ یم ستاسو پښې مِ وینځلي تاسو ته واجب دِي چه دَیَو دَبل پښې
۱۵ ووینځئِ ۱۵ ځکه چه ما تاسې ته نمونه درکړې ده تا چه څه چه ما له تاسو سره
۱۶ وکړل تاسې ئې هم وکړئ ۱۶ زه تاسو ته رښتیا وایم چه مریي له خپل

خاونده لوي نه دَي او نه اُستاذي دَ خپلَ استونکِي نه لوي دَي ۱۷ که تاسي ۱۷
په دي خبري پوهيږئ نو مبارک يي که ئي وکړئ ۱۸ زه ستاسو دَ ټولو په حق ۱۸
کښ نه وايم زه هغوي پيژنم چه ما غوره کړي دِي ليکن تاچه صحيفه پوره
شي هغه څوک چه له ما سره ډوډئ خوري خپله پونده ئي راباندِ پورته کړي دَه
۱۹ اوس زه پخوا له واقع کيدلو نه تاسو ته وايم تاچه هغه وقت چه واقع شي ۱۹
ايمان پرِ راوړئ چه زه هغه يم ۲۰ زه تاسو ته رښتيا وايم چه هرڅوک ۲۰
چه هغه قبلوِي چه زه ئي اَستوم ما قبلوِي او هرڅوک چه ما قبلوِي هغه
څوک قبلوِي چه زه ئي رالَستولي يم

۲۱ چه يسوع داسي وويل په رُوح کښ پريشان شه او شاهدِي ئي ۲۱
ورکړه او و ئي ويل چه زه تاسو ته رښتيا رښتيا وايم چه يَو له تاسو به
ما وسپارِي ۲۲ بيا شاګردانو يَو بل ته وکاته او په شک کښ وُو چه دَ چا ۲۲
په حق کښ ئي وويل ۲۳ يَو له شاګردانو ئي دَ يسوع په غيږ کښ تکيه ۲۳
کونکي وه چه يسوع ورسره مينه ولرله ۲۴ نو شمعُون پطرس هغه ته اِشارت وکړ او ۲۴
و ئي ويل چه ووايه هغه څوک دَي چه دَ هغه په باب کښ وايي ۲۵ نو ۲۵
هغه دَ يسوع په سِينه ورپريوت ورته ئي وويل اي خداونده څوک دَي
۲۶ يسوع ځواب ورکړ هغه دَي چه دَ هغه دَپارَ به نوړئ ډوبه کړم وربه کړم ۲۶
بيا ئي نوړئ ډوبه کړه يهُودا اِسقَريوطِي زوي دَ شمعُون ته ئي ورکړه ۲۷ او پس له ۲۷
نوړئ شيطان په هغه کښ ننوت بيا يسوع ورته ووِ څه چه کوي زر وکړه
۲۸ ليکن هيڅوک له هغو تکيا کونکو پوه نه شه چه دائي دَ څه دَپارَ ورته ۲۸
وويل ۲۹ ځينو ګمان وکړ له دي سببَ چه يهُودا همياني لرله يسوع ورته وويل ۲۹
چه څه له هغو ځيزونو نه چه موږ دَ اَختر دَپارَ په کار لرُو په بيعه واخله يا
داچه غريبانو ته څه ورکړِي ۳۰ بياچه هغه نوړئ واخستله زر بهر ته ووت او ۳۰
شپه وه

۳۱ اوچه بهر ته ووت نو يسوع ووِچه اِبنِ آدم اوس جلال بياموندلي ۳۱
دَي او اَللّٰه په ده کښِ جلال موندلي دي ۳۲ اواَللّٰه به وله به خپل ځان جلال ۳۲

٣٢ ورکړِي او هغه لره به زر جلال ورکاندِ ٣٣ اي هلکانو لږه مده نور له
تاسو سره يمِ تاسو به ما ولټوئ او لکه چه ما يهوديانو ته وويل
٣٤ چرته چه زه ورځم تاسي ورتلي نه شئِ اوس تاسو ته هم وايم ٣٤ زه تاسو
له نوِي حکم درکوم چه تاسي يَو له بله مِينه کوئِ لکه چه ما تاسو سره
٣٥ مِينه وکړه دغه سي تاسو هم يَو له بله مِينه کوئ ٣٥ په دي به ټول پوه شِي
چه تاسي ځما شاګردان يئِ که تاسو يَو له بلَ سره مِينه لرئِ
٣٦ ٣٦ شَمْعُون پِطْرَس ورته ووِ اي خاونده چرته ځي يسوع ځواب
ورکه هغه ځاي ته چه زه ځم ته اوس راپسي راتلي نه شي ليکن ته
٣٧ به ورستو راپسي راشي ٣٧ پِطْرَس ورته ووِ اي خداونده ولي زه نه توانيږم
٣٨ چه اوس په تاپسي درشم زه به خپل ځان ستا دَپارَ کيږدم ٣٨ يسوع ځواب ورکړ چه
ته خپل ځان ځما دَپارَ کيږدي څه ؟ زه تا ته رښتيا رښتيا وايم چه چرګ
به بانګ و نه وايِي ترهغه پوري چه ته به دري واره ځما انکار وکړي ÷

## ځوارلسم باب

١ ١ ستاسو زړه دِ پريشان نه شِي تاسي په اَلله ايمان راوړئِ په ما هم ايمان
٢ راوړئِ ٢ ځما دَ پلار په کور کښ ځايونه ډير دِي او که نه وِي نو تاسو ته به مِ
٣ ويلِي وُو ځم چه ستاسو دَپارَ ځاي تيار کړم ٣ او که ځم او تاسو ته ځاي تيار
٤ کړم بيا راځم او تاسو به ځان سره واخلم تا چه چرته زه يم تاسي هم يئِ ٤ او چرته
٥ چه زه ځم لار ئي پيژنئِ ٥ تُومَا ورته ووِيل اي خداونده مونږ نه پوهيږو ته چرته
٦ ځي نو لار به څرنګ وپيژنو ٦ يسوع ورته ووِ زه لار او رښتيا او ژوندون
٧ يم هيڅوک پلار ته نه ورځِي بي ځما دَ وسِيلي نه ٧ که تاسي زه پيژاندلي
نو پلار به مو هم پيژانده او پس له دي به ئي وپيژنئِ او هغه مو ليدلي دَي
٨ ٨ فَيلبُوس ورته ووِ اي خداونده پلار راته ښکاره کړه او مونږ له بس دَي
٩ ٩ يسوع ورته ووِ اي فَيلبوسَ زه دا هونبره مده له تاسو سره يم او تا و نه
پيژاندلم هغه چا چه زه ليدلي يم پلار ئي ليدلي دَي او ته څرنګ
١٠ وايِي چه پلار را ښکاره کړه ١٠ ولِي ته ايمان نه راوړي ؟ چه زه به پلار کښ يم

او پلار په ما کښې دا خبرې چه زه تاسې ته وېم له ځانه نه وايم بلکه پلار
١١ چه په ما کښې اوسي هغه دا کارونه کوي ١١ په ما ايمان راوړئ چه زه په پلار
کښې يم او پلار په ما کښې او که نه په سبب د دي کارونو په ما ايمان راوړئ
١٢ ١٢ زه تاسو ته رښتيا رښتيا وايم چه هغه څوک چه په ما ايمان راوړي دا
کارونه چه زه کوم هغه به ئې هم وکانړ بلکه تر دي لوئې به هم وکانړ ځکه چه
١٣ زه خپل پلار ته ځم ١٣ او څه چه تاسو به نوم زما نه وغواړئ نو هغه به زه وکړم
١٤ تا چه پلار په زوي کښې جلال بيامومي ١٤ که څه تاسو په نوم زما نه وغواړئ نو
١٥ ١٦ هغه به زه کوم ١٥ که تاسې زما سره مينه لرئ نو حکمونه زما وساتئ ١٦ او زه به
له پلاره سوال وکړم او هغه به بل پار اقليط درکړي چه ترابده به له
١٧ تاسو سره وي ١٧ يعني روح د رښتيا چه جهان ئې قبلولې نه شي ځکه چه نه
ئې وينې او نه ئې پيژني ليکن تاسو ئې پيژنئ ځکه چه له تاسو سره اوسي او په
١٨ ١٩ تاسو کښې به وي ١٨ زه به تاسو يتيمان پرې نږدم تاسو ته راځم ١٩ لږ وقت نور
او جهان به مې بيا ونه وينې ليکن تاسې به ما وينئ ځکه چه زه ژوندي يم
٢٠ تاسې به هم ژوندي يئ ٢٠ په هغه ورځ به تاسې پوه شئ چه زه په خپل پلار
٢١ کښې يم او تاسې په ما کښې او زه په تاسې کښې ٢١ هغه څوک چه زما حکمونه
لري او ساتي ئې هغه دي چه له ما سره مينه لري او هغه څوک چه له ما
سره مينه لري پلار به مې ور سره مينه وکړي او زه به ور سره مينه لرم او
٢٢ ځان به ور ته ظاهر کړم ٢٢ يهودا (نه اسقريوطي) ور ته ووې اې خداونده څرنګ
٢٣ دي چه ته به خپل ځان را ته ښکاره کړي او نه جهان ته ٢٣ يسوع په ځواب
کښې ور ته ووې که څوک له ما سره مينه لري زما کلام به وساتي او زما پلار به
٢٤ ور سره مينه لري او مونږ به وله راڅو او ور سره به تکاؤ شو ٢٤ هغه څوک چه
له ما سره مينه نه لري زما خبرې نه ساتي او دا کلام چه اورئ زما نه دي بلکه د
پلار دي چه زه ئې را استولي يم
٢٥ ٢٦ ٢٥ دا خبرې مې تاسو ته وويلې چه له تاسو سره اوسيدم ٢٦ مګر
پار اقليط يعني روح القدس چه پلار به زما په نوم را واستوي هر څه به تاسو

ته در وښيي او هرڅه چه ما درته ويلي دي تاسو ته به ئي در په ياد کړي -
٢٧ ٢٧ ستاسو دپاره سلام پرېږدم خپل سلام تاسو ته درکوم نه لکه چه جهان
ئي ورکوي تاسو ته ئي درکوم ستاسو زړه دِ پرېشان نه شي او ودِ نه وېرېږي
٢٨ ٢٨ اورېدلي مو دي چه ما درته ووِ چه ځم او تاسو ته راځم که تاسو له ما
سره مينه کړي وَي خوشحال شوِي به وَئِ له دې سبب چه زه پلار ته ځم ځکه
٢٩ چه پلار له مانه لوي دَي ٢٩ او اوس په خوا له واقع کېدلو نه تاسو ته مِ ويلي
٣٠ دِي تاچه هرکله چه واقع شي ايمان به راوړئِ ٣٠ نو پس له دې به له تاسو سره ډېرې
خبرې ونه کړم ځکه چه سردار دَ جهان راځي او په ما کښ هيڅ څيز نه لري
٣١ ٣١ ليکن چه جهان پوه شي چه زه له پلار سره مينه لرم او لکه چه پلار
مانه حکم راکړي دَي هم هغه سي کوم پاځئِ ځئِ چه له دلته نه ځو +

# پنځلسم باب

١ ٢ ١ زه رښتني تاک يم او پلار ځما باغوان دَي ٢ هره ښاخکه چه په ما کښ مېوه
نه راوړي هغه ئې وړي او هره ښاخکه چه مېوه راوړي هغه ئې صافوي تاچه
٣ زياته مېوه راوړي ٣ اوس تاسي په سبب دَ هغه کلام چه تاسي ته مِ ويلي
٤ دَي صاف يئِ ٤ تاسي په ما کښ قائم شئِ او زه به تاسي کښ لکه چه ښاخکه
په خپله مېوه راوړي نه شي که په تاک کښ قايمه نه شي هم هغه سي تاسي
٥ يئِ که په ما کښ نه اوسئِ ٥ زه تاک يم تاسي ښاخکي هغه څوک چه په ما کښ
اوسي او زه به هغه کښ نو هغه ډېره مېوه راوړي ځکه چه تاسي بي له ما
٦ نه هيڅ کولي نه شئِ ٦ که څوک په ما کښ نه اوسي هغه به لکه ښاخکه بهر
وغورزولي شي او وچه کېږي او ټغوي ئې ټولوي او په اور کښ ئې اچوي او سځلي
٧ کېږي ٧ که تاسي په ما کښ اوسئِ او خبرې ځما تاسي کښ اوسي نو هرڅه
٨ چه غواړئِ سوال وکړئِ او تاسو له به وشي ٨ په دې ځما پلار جلال موندي چه
٩ تاسي ډېره مېوه راوړئِ نو تاسو به ځما شاگردان شئِ ٩ لکه چه پلار ما سره مينه
کړي ده هغه سي ما له تاسو سره مينه کړي ده تاسي ځما په مينه کښ اوسئِ
١٠ ١٠ که تاسي ځما حکمونه وساتئِ ځما په مينه کښ به اوسئِ لکه چه ما دَ پلار

حکمونه ساتلي دي او دَده په مِينه کښې اوسم
١١ دا خبري مې تاسو ته ويلي دي تاچه خما خوشحالي په تاسوکښې وي
١٢ او ستاسو خوشحالي پوره شي ١٢ حکم خما دادَي چه تاسي يَوله بله مِينه
١٣ لرئِ لکه چه ما له تاسو سره مِينه کړي دَه ١٣ له دي زياتَ مِينه هيڅوک
١٤ نه لري چه څوک خپل ځان دَ خپلو دوستانو دَپارَ ورکاندِ ١٤ تاسي خما
١٥ دوستان يئِ که هرڅه چه تاسوته حکم کوم هغه وکړئِ ١٥ پس له دي تاسوته مريونه
نه وايم ځکه چه مريي نه پوهيږي چه خاوند ئي څه کوي بلکه تاسوم دوستان
بللي يئِ ځکه چه هرڅه چه م له خپل پلار نه واوريده تاسوم پرِخبر کړئِ
١٦ ١٦ تاسو زه غوره کړي نه يم بلکه ما تاسي غوره کړي يئِ او تاسي م مقرر
کړي يئِ چه لاړ شئِ او ميوه راوړئِ او ستاسي ميوه قايم شي تاچه هرڅه
١٧ چه له پلاره خما په نوم وغواړئِ تاسو ته به ئي درکړي ١٧ زه تاسو ته داحکم
١٨ کوم چه تاسو يَوله بله مِينه کوئِ ١٨ که جهان له تاسو سره کينه کوي نو تاسي
١٩ پوهيږئِ چه وړاندِ له تاسو ئي له ما سره کينه کړي دَه ١٩ که تاسو دَ جهانِ وئ
نو جهان له خپلو خپلوانو سره مِينه لري ليکن ځکه چه تاسي دَ جهان نه يئِ
بلکه ما تاسو له جهانه غوره کړي يئِ له دي سبَبَ جهان له تاسو سره کينه
٢٠ لري ٢٠ هغه کلام چه ما درنه ووايه ياد ئي کړئِ چه مريي له خپل خاوند نه لوئ
نه دَي که زه ئي آزار کړم نو تاسو به هم آزار کړي که خما کلام ئي ساتلي وي
٢١ نو ستاسو به هم وساتي ٢١ ليکن دوي به دا دواړه کارونه خما دَ نوم په سبَبَ
٢٢ در سره وکړي ځکهَ چه هغه څوک چه زه ئي رااَستولي يم نه ئي پيژني ٢٢ که
زه راغلي نه وي او خبري م ورسره کړي نه وي نو دوي به خطاکار نه وُو
٢٣ ليکن اوس دَ خپلي خطا دَپارَ هيڅ عُذر نه لري ٢٣ هغه څوک چه له ما سره
٢٤ کينه لري له پلاره سره م هم کينه لري ٢٤ که ما په دوي کښې هغه کارونه
کړي نه وي چه بل هيچا کړي نه دي نو خطا به ئي نه وَه ليکن اوس ئي وليدل
٢٥ او له ما سره او هم خما له پلاره سره ئي کينه ولرله ٢٥ ليکن دي دَپارَ چه
هغه کلام چه دَدوي په توريت کښې ليکلي دَي پوره شي چه له ما سره ئي بي سببه کينه

٢٧ کړي ده ٢٦ ليکن هرکله چه هغه پارَاقليط راشي چه زه ئي له پلاره تاسو ته واستوم
يعني رُوح دَ رښتيا چه دَ پلار نه راوزي هغه به ځما په باب کښې شاهدي ورکړي
او تاسي به هم شاهدي ورکړئ ځکه چه له اوّله تاسي له ما سره وئ ÷

# شپاړسم باب

١ ١ دا خبري مې تاسو ته ويلي دي چه تيندک ونه خورئ ٢ له عبادتخانو نه به
مو وباسي بلکه هغه ساعت راځي چه هرڅوک چه تاسو ووژني ګمان به ئي دا
٣ وي چه دَ اَللّه خدمت کوي ٣ او دا کارونه به درسره وکا ځکه چه نه ئي پلار
٤ پيژاندلي دَي او نه ئي زه ٤ ليکن دا خبري مې درته وويلي تا چه هرکله چه
هغه ساعت راشي نو تاسوني يادکړئ ځنګه چه ما تاسو ته ويلي وُو او دا خبري مې له
٥ اوَّله نه درته ويلي دي ځکه چه زه له اوّل نه درسره وم ٥ ليکن اوس هغه
٦ له ځم چه را اَستولي ئي يم او له تاسو نه مې هيڅوک نه پوښتي چه چرته ځي ٦ بلکه
له دي سبَبَ چه دا خبري مې تاسو ته وويلي ستاسو زړه له غمه ډک شوي دي -
٧ ٧ ليکن زه رښتيا درته وايم چه تاسو ته بهتره دَه چه زه لاړ شم ځکه چه که
زه لاړ نه شم هغه پارَاقليط به تاسو ته را نه شي ليکن که زه لاړ شم نو
٨ هغه به تاسو ته را واستوم ٨ او چه هغه راشي په خطا او په صداقت او په
٩ ١٠ عدالت به جهان پوه کاندي ٩ په خطا ځکه چه په ما ايمان نه راوړي ١٠ په صداقت
١١ ځکه چه خپل پلار ته ځم او تاسي به مې بيا ونه وينئ ١١ په عدالت ځکه چه په
١٢ سردار دَ دي جهان عدالت کړي شوي دَي ١٢ لا نوري خبري ډيري لرم چه
١٣ تاسو ته ئي ووايم ليکن تاسو ئي اوس طاقت دَ زغملو نه لرئ ١٣ ليکن چه
هغه راشي يعني رُوح دَ رښتيا نو تاسو ته به ټولي رښتني رهنمائي وکړي ځکه
چه هغه به له ځانه هيڅ ونه وايي بلکه هرڅه چه واوري وبه ئي وايي او تاسو
١٤ به په راتلونکو څيزونو خبر کړي ١٤ هغه به ما ته جلال راکړي ځکه چه هغه به
١٥ له ما نه اخلي او تاسو به پري خبر کړي ١٥ هرڅه چه پلار لري ځما دي له دي
سبَبَ مې وويل چه له ما نه به ئي واخلي او تاسو به پرِ خبر
١٦ کړي ١٦ لږه مُـده تاسو به ما ونه وينئ او بيا لږ مُـده ما به ووينئ -

١٧ څینو ذده له شاګردانو یَوله بله ووِچه دا څــه دِي چه مونږ ته وایِي ١٧
چه لږه مُــده به مِ ونه وِینئِ او بیا لږه مُــده به مِ ووِینئِ اوچه پلار
ته ځم ١٨ بیائي ووِیل چه دا څه دِي چه وایِي په لږي مُدي نه پوهیږو چه څه ١٨
وایِي ١٩ نو یسوع پوه شه چه دوي غواړِي چه وئي پوښتِي او ور ته ئي ووِیل ١٩
چه په دي خبره کښ یَوله بله تفحص کوي څه؟ چه و مِ وِیل لږه مُده اوتاسو
مِ نه وِینئِ او بیا لږه مده او تاسو به مِ ووِینئِ ٢٠ زه تاسو ته رښتیا رښتیا ٢٠
وایِم چه تاسي به وژاړئِ اوویر به وکړئِ لیکن جهان به خوشحالیږي تاسي به
غمجن یئِ لیکن ستاسي غم به په خوشحالئِ بدل کړي شي ٢١ په ښځه چه درد ٢١
دَلنګانه راشي غمجنه کیږي له دي سببَ چه ساعت ئي راغلي دي لیکن هرکله چه
هلک راوړِي بیا ئي زحمت په یاد نه وِي دَ خوشحالئ په سببْ چه سړي په
جهان کښ پیدا شوي دَي ٢٢ تاسي هم هسي اوس غم لرئِ لیکن زه به تاسو ٢٢
بیا ووِینم او ستاسو زړه به خوشحالَ شي او ستاسو خوشحالي به هیڅوک در نه
وانه خلِي ٢٣ او هغه ورځ به له ما نه هیڅ پوښتنه ونه کړئ زه تاسو ته ٢٣
رښتیا رښتیا وایم که تاسو له پلاره څه سوال وکړئِ هغه به ئي ځما په نوم
درکاندِ ٢٤ تر اوسَ پوري تاسو ځما په نوم هیڅ څیز سوال کړي نه دَي سوال. ٢٤
وکړئِ او تاسو به ئي بیاموئِ چه ستاسوخوشحالي پوره شي
٢٥ دا خبري مِ تاسو ته په متلونو کښ ووِیــلي ساعت راځي چه ٢٥
نور به په متلونو کښ له تاسو سره خبري ونه کړم بلکه په ظاهره به دَ
پلار په باب کښ خبري وکړم ٢٦ هغه ورځ به تاسي ځما په نُوم سوال وکړئِ او ٢٦
زه تاسو ته نه وایم چه زه ستاسو دَپارَ له پلار نه وغواړم ٢٧ ځکه چه پلار
په خپله له تاسو سره مینه کوِي له دي سببَ چه تاسو راسره مینه کړي دَه
او ایمان مو راوړي دَي چه زه له پلارَ راووتم ٢٨ له پلارَ راووتم اوجهان ته ٢٨
راغلم بیا جهان پریږدم او پلار ته ځم ٢٩ شاګردانو ئي ورته ووِیل ګوره اوس ٢٩
ښکاره خبري کوي او هیڅ متل نه وایِي ٣٠ اوس پوه شولُو چه ته په هر څه ٣٠
پوهیږي او حاجت نه لري چه څوک له تا نه پوښتنه وکړي او په دغه مونږ ایمان

۳۱ راوړلي دي چه ته له الله ؑ راوتلي يئ ۳۱ يسوع ځواب ولـه وركـړ
۳۲ چه اوس ايمان راوړئ څه؟ ۳۲ گوره ساعت راځي هو راغلي دي چه تاسي به
خپلو خپلوانو ته خواره واره شئ او ما به يواځي پرېږدئ او زه يواځي نه يم ځكه
۳۳ چه پلار له ما سره دي ۳۳ دا خبري مې درته ويلي دي چه په ما كښ سلامتي
لرئ په جهان كښ زحمت لرئ ليكن خاطر جمع اوسئ ځكه چه زه په جهان
غالب شوم +

## اوولسم باب

۱ يسوع دا خبري وكړي او سترگي ئې آسمان ته پورته كړي او وئې ويل
اي پلاره ساعت راغلي دي خپل زوي ته جلال وركړه تا چه زوي هم تا ته
۲ جلال دركړي ۲ لكه چه تا ده ته په واړو جُسو قدرت وركړي دي تا چه هرڅوك
۳ لره چه تا ده ته وركړي دي دي هغو ته ابدي ژوندون وبخښي ۳ او ابدي ژوندون
دا دي چه هغوي تا لره هغه واحد حقيقي الله او يسوع مسيح هغه چه تا
۴ رالېږلي دي وپېژني ۴ ما تا ته په زمكه كښ جلال دركړ او هغه كار چه
۵ ما ته دې راكړي وه چه وئې كړم ترسره مې كړ ۵ او اوس ما له خپل ځان څخه
جلال راكړه اي پلاره هغه جلال چه مخوا له هستېدلو د جهان مې تا څخه لره
۶ ستا نوم مې په هغو سړيو چه له جهانه دې ما ته راكړي وو ظاهر كړ هغه ستا
۷ وو او ما ته دې راكړي دي او ستا كلام ئې ساتلي دي ۷ اوس پوه شوي دي
۸ چه هغه څه چه تا راكړي دي ستا له طرفه دي ۸ ځكه چه هغه خبري چه
تا ما له راكړي دي ما هغو ته وركړي دي او هغو هم قبولي كړي دي او په رښتيا
پوه شوي دي چه ستا له طرف نه راغلي يم او ايمان ئې راوړي دي چه زه
۹ تا رالېږلي يم ۹ زه د هغو د پاره خواست كوم نه د جهان د پاره خواست كوم بلكه د هغو
۱۰ د پاره چه ما ته دې راكړي دي له دي سببه چه ستا دي ۱۰ او هغه ټول چه زما
دي هغه ستا دي او هغه څه چه ستا دي هغه زما دي او ما په دوي
۱۱ كښ جلال موندلي دي ۱۱ او اوس به بيا په جهان كښ نه يم ليكن دوي
په جهان كښ دي او زه تا ته درځم اي قدوس پلاره هغه چه ما ته

دِ راکړي دِي په خپل نوم ئې وساته تاچه يَو شِي لکه چه مونږ يُو ۱۲ ترڅو بوري ۱۲
چه زه له هغو سره په جهان کښ وم هغوي مِ ستا په نوم وساتل هغه څوک
چه تا ما ته راکړي دِي او حفاظت مِ ئې وکړ او هيڅوک له هغو نه هلاک نه شه
بې له زويَ دَ هلاکتَ چه صَحيفه پوره شِي ۱۳ او اوس تا لره درځم او دا ۱۳
خبرې په جهان کښ وايم تاچه څما خوشحالي په خپل ځان کښ پوره ولري
۱۴ ما ستا کلام هغوي له ورکړي دَي او جهان ور سره کينه وکړه ځکه چه له جهانَ ۱۴
نه دِي لکه چه زه له جهانَ نه يم ۱۵ زه خواست ندکوم چه ته دوي له جهان نه واخلي ۱۵
بلکه چه دوي له شرِيرَ وساتې ۱۶ لکه چه زه له جهانَ نه يم دوي هم له جهانه ۱۶
نه دِي ۱۷ ته ئې په رښتيا کښ مُقَدّس کړه ستا کلام رښتيا دَي ۱۸ چه زه ئې ۱۷
په جهان کښ راواستولم ما هم دوي په جهان کښ واستول ۱۹ او زه دَدوي دَپارَ ۱۹
خپل ځان تقديس کوم تاچه دوي هم په رښتيا کښ مُقَدَّس شِي ۲۰ او زه نه يُوازي دَ ۲۰
دوي دَپارَ خواست کوم بلکه دَپارَ دَ هغو هم چه دَ کلام په سبَبْ په ما باندِ ايمان
راوړِي ۲۱ تا چه ټول يَو شِي لکه چه ته اې پلاره په ما کښ يې او زه په تا کښ ۲۱
چه هغوي هم په مونږ کښ يَو شِي تاچه جهان ايمان راوړي چه زه تا را
اَستولي يم ۲۲ او هغه جلال چه تا ما ته راکړي دي ما هغو له ورکړي دَي ۲۲
تا چه يَو شِي لکه چه مونږ يَو يُو ۲۳ زه په هغو کښ او ته په ما کښ تا چه ۲۳
هغوي په يَو کښ کامل شِي تا چه جهان پوه شِي چه زه تا را اَستولي يم
او له دوي سره دِ مينه وکړه لکه چه له ما سره دِ مينه کړي دَه ۲۴ اې ۲۴
پلاره غواړم چه هغه کسان چه ما ته دِ راکړي دِي راسره وِي چرته کښ
چه زه يم تاچه څما جلال چه تا راکړي دَي دوي ئې ووِيني ځکه چه تا دَدُنيا
دَ بنياد له اچولو نه وړاندِ له ما سره مينه لرله ۲۵ اې صادقه پلاره جهان ته ۲۵
پيژاندلي نه يې ليکن ما پيژاندلي يې او دوي پوه شوِي دِي چه زه تا را
اَستولي يم ۲۶ او ما ستا نوُم دوي ته ښولي دَي او ور وبه ئې ښَيم ۲۶
تاچه هغه مِينه چه تا له ما سره کړي دَه په دوِي کښ وِي او زه
په دوِي کښ +

# اتہ لسم باب

١ ١ چه يسوع داخبري وويلی نو له شاګردانو سره دَ قَدْرُون له خوړ پوري وت او هلته
٢ يو باغ وه چه دَي او شاګردان ئي په کښ ننه وتل ٢ او يَهُودا هم چه دَده
سپارونکي وه هغه ځاي پيژانده ځکه چه يسوع ډير واره له شاګردانو سره
٣ هلته ته ٣ بيا يَهُودا يَوټولي دَ سپاهيانو او دَ محصلانو له سردار کوهينانو او دَ فَرِيسيانو
نه واخست او له ډيوو او له مشعلونو او له وَسلو سره هغه ځاي له ورغلل-
٤ ٤ بيا يسوع چه په هرڅه چه په ده راځي پوه وُه بهر راووت او هغوته ئي
٥ ووِچه تاسي څوک لټوئ ٥ هغو ځواب ورکه چه يسوع ناصِري يسوع ورته ووِ
٦ چه زه يم يَهُودا هم چه دَده سپارونکي وه له هغو سره ولاړ وه ٦ چه
٧ ده ورته ووِ چه زه يم نو بيرته شول او په زمکه پريوتل ٧ بيا دوباره ئي پوښتنه
٨ ورنه وکړه چه څوک لټوئ وئي ويل يسوع ناصِري ٨ يسوع ځواب ورکه چه ما
٩ درته ويلي دِي چه زه يم نو که تاسي ما لټوئ دوي پريږدئ چه لاړ شِي ٩ تا
چه هغه کلام چه ويلي وُه پوره شِي چه له هغو نه چه ما ته دِ راکړي دِي
١٠ هيڅوک مِ له هغو نه ورک کړِي نه دِي ١٠ بيا شَمْعُوْن پَطْرَس چه تُوره ورځه
وه وئي يستله او دَ سردار کوهِن مريي ئي وواهه او ښَي غوږ دَ هغه ئي
١١ پريکړِ او نُوم دَ هغه مريي مَلخوس وه ١١ يسوع پَطْرَس ته وويل چه خپله
تُوره په تيکي کښ کړه ځکه چه هغه پياله چه پلار ما ته راکړي ده زه ئي
و نه ښنبم څه ؟
١٢ ١٢ بيا هغي ټولي او سردار او محصلانو دَ يَهُوديانو يسوع ونيو
١٣ او وئي تاړه ١٣ او هغه ئي اوّل اَنَاس ته بوت چه دَ قِيافاس خسر وه چه
١٤ دَ هغه کال سردار کوهِن وه ١٤ او قِيافاس هغه وه چه له يَهُوديانو سره
ئي مصلحت وکړ په کار دِي چه يو سړي دَ اُمّت دَپاره مړ شِي
١٥ ١٥ او شَمْعُوْن پَطْرَس او هغه بل شاګرد په يسوع پسي لاړل هغه
شاګرد چه دَ سردار کوهِن سره ئي پيژندګلي وه له يسوع سره دَ سردار کوهِن

غوږي ته ننه وت ۱۶ او پِطرُس دروازي څخه بهر ولاړ وه نو هغه بل شاګرد چه ۱۶
دَ سردار کوهِن آشنا وه بهر راووت او له دروانځي سره ئي خبري وکړي او
پِطرُس ئي دننه بوت ۱۷ او هغه وِينځه چه دروانځي وَه پِطرُس ته ئي ووِ چه ۱۷
ته هم دَده سړِي له شاګردانو ئي هغه ووِ نه يم ۱۸ او غلامانو او ۱۸
مُحصّلانو اور بَلْ کړي وه او ولاړ وُو څکه چه يَخني وَه او ځانونه ئي تودول
پِطرُس هم ورسره ودريده او ځان ئي توداوه

۱۹ بيا سردار کوهِن دَ شاګردانو په باب او دَ تعليم په باب ئي له ۱۹
يسوع نه پوښتنه وکړه ۲۰ يسوع ځواب ورکړ چه ما جهان ته ښکاره ويلي دِي ۲۰
ما تل په عبادتخانه او په هيکل کښ چه ټول يهُوديان مدام هلته ټوليږي
تعليم ورکاوه او په پټه مِ هيڅ نه دِي ويلي ۲۱ ته ولي پوښتنه را نه کوي ۲۱
هغوي چه اوريدلي ئي دِي و ئي پوښته چه ما هغوي ته څه ويلي دِي ګوره
دوي پوهيږي چه ما څه ويلي دِي ۲۲ چه دا خبره ئي وکړه نو يَو له مُحصّلانو چه ۲۲
نژدي ولاړ وه يسوع ئي په څَپيړه وواهه ورته ئي ووِ چه ته سردار کوهِن
ته داسي ځواب ورکوي ۲۳ يسوع وله ځواب ورکړ که ما بد ويلي دِي په هغي
بدئِ شاهِدي ورکړه او که مِ ښه ويلي دِي نو ولي مِ وهي ۲۴ اَنّاس دَي ۲۴
تړلي قِيافاس سردار کوهِن ته واستاوه

۲۵ او شَمْعُون پِطرُس ولاړ وه او ځان ئي توداوه او دوي ور ته ۲۵
ووِ چه ته هم دَده له شاګردانو ئي ده انکار وکړ و ئي ويل زه نه يم
۲۶ يَو له مريُونو دَ سردار کوهِن چه دَ هغه خپل وه چه پِطرُس ئي غوږ ۲۶
پريکړي وه و ئي ويل چه ما ته په باغ کښ ورسره نه يي ليدلي څه ؟ ۲۷ بيا ۲۷
پِطرُس انکار وکړ او په هغه ساعت چرګ بانګ وواهه

۲۸ بيا يسوع ئي دَ قِيافاس له مخه دِيوان‌خاني ته راوست او سحر ۲۸
وه او هغوي په خپله دِيوان‌خاني ته نه ننوتل تا چه ناپاک نه شِي بلکه چه
فَصَحَ وخوري ۲۹ له دي سببَ پيلاطُوس هغوي له راووت او وئي ويل چه په ۲۹
دي سړِي څه دعويٰ کوئ ۳۰ په ځواب کښ ئي ورته وويل چه که دا سړي ۳۰

٣١ بدکار نه وي نو تا ته به مو سپارلي نه وه ٣١ نو پيلاطُوس ور ته وويل
تاسي دي ونيسئ او دَ خپل شريعت په موافق دِده عدالت وکړئِ يَهُودِيانو
٣٢ ورته وويل موږ له روا نه دِي چه څوک ووژنو ٣٢ دا دَدي دپارَ چه خبره
دَ يسوعَ پوره شِيَ چه بيان ئي کړه چه په کوم مرګ به هغه مړ شِي
٣٣ ٣٣ نو دوباره پيلاطُوس دِيوانخانې ته ننهٔ ووت او يسوعَ ئي وباله
٣٤ او ورته وئي ويل چه ته دَ يَهُودِيانو بادِشاه يي څه؟ ٣٤ يسوع ځواب ورکړ
٣٥ چه دا خبره له ځانه کوي څه؟ يا نورو ځما په حق کښي درته وَيلي دِي ٣٥ پيلاطُوس
ووِ چه زه يَهُودِي يم څه؟ ستاخپل قوم او سردار دَ کوهِنانو ما ته سپارلي
٣٦ يي تاڅه کړي دِي؟ ٣٦ يسوع ځواب ورکړ چه بادشاهِي ځما دَدي جهان نه ده که
بادشاهِي ځما دَدي جهان وي نو ځما نوکرانو به جنګ کړي وه تاچه زه يَهُودِيانو
٣٧ ته ونه سپارلي شم اوس بادشاهِي ځما له دلته نه ده ٣٧ بيا پيلاطُوس ورته
وويل نو ته بادشاه يي څه؟ يسوعَ ځواب ورکړ چه ته پخپله وايي چه زه بادشاه
يم زه هم دَدي دپارَ پيدا شوي يم او هم ددي دپارَ جهان ته راغلم چه په رښتيا
٣٨ شاهِدي ورکړم هرڅوک چه له رښتيِنې دِي ځما آواز اوري ٣٨ پيلاطُوس ور ته
وويل چه رښتيا څه دِي
او دا خبري ئي وکړي او بيا يَهُودِيانو ته ووت او هغو ته ئي ووِ چه زه
٣٩ هيڅ عَيب په کښي نه مومم ٣٩ او ستاسو دَستُور دا دَي چه يَو تَن ستاسو دپارَ په
فَصح کښي آزادوم نو غواړئِ چه زه ستاسو دپارَ بادشاه دَ يَهُودِيانو آزاد کړم څه؟
٤٠ ٤٠ بيا هغو ناري کړي او وئي ويل دغه نه بلکه بَرَابّاس او دا بَرَابّاس غل وه ✣

## نه لسم باب

١ آنو بيا پيلاطُوس يسوع ونِيو او په کروړه ئي وواهه ٢ او سپاهيانو يَو تاج له اَغزو نه
٢ واوده او دَ هغه په سر ئي کيښود او اَرغَوانِي جامي ئي ورواغوستولي ٣ ور ته
٣ راغلل او وئي ويل اَلسّلام اي بادشاه دَ يَهُودِيانو او په څپيړو ئي واهه ٤ نو پيلاطُوس
٤ بيا بهر راووت او هغو ته ئي وويل ګوره زه ئي تاسو ته بهر راوباسم تاسو
٥ پوه شِيِ چه زه په دغه کښي هيڅ عَيب نه مومم ٥ بيا يسوع تاج دَ اَغزو په سر

۶ اوارغواني جامي ئي اغوستي بهر راووت او ورته ئي وويل گورئ هغه سړي ۶ نو چه
سردار کوهيناڼو او محصلانو هغه وليد ناري ئي کړي ويل ئي چه په صليب کړه په
صليب کړه پيلاطُوس هغو ته وويل تاسو ئي په خپله ونيسئ او په صَليب
۷ ئي کړئ ځکه چه زه په ده کښ هيڅ عيب نه مومم ۷ يَهُودياڼو ځواب ورکړ چه
مونږ شريعت لرُو او موافق دَ شريعت ځمونږ بايده دي چه مړ کړي شي ځکه چه
۸ ځان ئي اِبنُ الله جوړ کړ ۸ نو چه پيلاطُوس دا خبره واوريده زيات وويريده
۹ ۹ او بيا دِيوانخاني ته ننوت او يسوع ته ئي وويل ته دَکوم ځاي يي ليکن
۱۰ يسوع وله هيڅ ځواب ور نه کړ ۱۰ پيلاطُوس ورته وويل چه ته له ما سره
خبري نه کوي نه پوهيږي څه ؟ چه اختيار لرم چه دِ خلاص کړم او اختيار لرم
۱۱ چه دِ په صَليب کړم ۱۱ يسوع ځواب ورکړ چه ستا په ما بانډِ هيڅ اِختيار
نه وه که تا ته له پاسَ درکړي شوي نه وَي له دي سببه هغه څوک چه
۱۲ زه ئي تا ته وسپارلم زياته گناه لري ۱۲ په دي پيلاطُوس وغوښت چه دي آزاد
کاندِ ليکن يَهُودياڼو ناري کړي او وِ ئي ويل که ته دا سړي آزاد کړي نو
ته دَ قيصَر دوست نه يي هرڅوک چه خپل ځان بادشاه جوړوي دغه
۱۳ په خلاف دَ قيصَر خبره کوي ۱۳ نو پيلاطُوس چه دا خبري واوريدي نو
يسوع ئي بهر راوست او په تخت دَ حکومت کښيناست په هغه ځاي
۱۴ چه نُوم ئي دَوکانچه وه مگر په عبراني کښ گَبتَه ۱۴ نو تياري دَ فَصْح او شپږم
۱۵ ساعت نژدي وه بيا ئي يَهُودياڼو ته وِ ِ گورئ ستاسو بادشاه ۱۵ هغو ناري
کړي چه بوئ زه په صَليب ئي کړه پيلاطُوس هغو ته وويل چه ستاسو
بادشاه په صَليب کړم څه ؟ سردار کوهيناڼو ځواب ورکړ چه بادشاه نه لرو بي
۱۶ له قيصَره ۱۶ بيا ئي دَي هغو ته وسپاره تاچه په صَليب کړي شي
۱۷ ۱۷ نو يسوع ئي ونيو او هغه خپل صَليب واخست او هغه ځاي ته
بهر لاړ چه دَ گَکرَئ ځاي بللي شه او په عِبراني کښ ور ته گَلگَتا ويلي
۱۸ شِي ۱۸ په هغه ځاي په صَليب کړ او ورسره دوه کسه نور يَوخوا بل خوا
۱۹ او يسوع په مينځ کښ ۱۹ او پيلاطُوس يَوخط وليکه او په صَليب ئي ولګاوه

٢٠ او دا ئي ليکلي وُو چه يسوع ناصري بادشاه دَ يهُوديانو ٢٠ نو دا خط ډيرو له يهُوديانو نه
ولوست ځکه چه هغه ځاي چه يسوع په صَلِيب شوي وه ښهر ته نژدي وه او هغه په
٢١ عِبراني او په رُومي او يُوناني کښ ليکلي وُو ٢١ بيا سردار کوهينانو دَ يهُوديانو پيلاطوس
ته وويل چه بادشاه دَ يهُوديانو مه ليکه بلکه چه ده ويلي وُو چه زه بادشاه دَ
٢٢ يهُوديانو يم ٢٢ پيلاطوس ځواب ورکړ چه څه ليکلي مې دِي ليکلي مې دِي
٢٣ ٢٣ بيا سپاهيانو چه يسوع ئې په صَلِيب کړ دَ ده جامي ئې واخستي او څلور
حصّي ئې کړي دَ هر يو سپاهي دَ پارَ يوه حصّه او قميص ئې هم او قميص بې ګنډلو وه
٢٤ سر تر سره اودلې شوي وه ٢٤ نو يو له بله ئې وويل چه دا نه شلوو بلکه دَ ده دَ پارَ
په هِسک واچوو چه دَ چا شي تا چه صَحِيفه کامله شي

چه وائي چه ځما جامي ئې په خپلو کښ وويشلي
او ځما په قميص ئې هِسک واچاوه

او سپاهيانو دغه سي وکړل
٢٥ ٢٥ او دَ يسوع دَ صَلِيب څوا ته مور ئې او دَ مور خور ئې مريمه ښځه دَ کليوپاس
٢٦ او مريمه مجدليني ولاړي وي ٢٦ او چه يسوع خپله مور او هغه شاګرد
چه مِينه ئې پر کوله ولاړ وليدل مور ته ئې وويل اي ښځي ګوره خپل
٢٧ زوي ٢٧ بيا شاګرد ته ئې وويل ګوره ستا مور او له هغه ساعت نه هغه
شاګرد خپل ځاي ته بوتله
٢٨ ٢٨ پس له هغه يسوع پوه شه چه اوس هر څه پوره شول تا چه
٢٩ صَحِيفه کامله شي و ئې ويل چه زه تږي يم ٢٩ او هلته يو لوټکې له سرکي
نه ډک پِنبي وه او هغو اسفنج په سرکي ډک کړ او په زوفا بانډِ ئې
٣٠ کيښود او دَ هغه خولي ته ئې ورساوه ٣٠ چه يسوع سرکه واخستله و ئې ويل
چه پوره شه نو سر ئې ښکته کړ او رُوح ئې وسپاره
٣١ ٣١ بيا يهُوديانو دَدي دَ پارَ چه مړي دَ سبّت په ورځ په صَلِيب پاتي
نه شي ځکه چه وقت دَ تياري وُه چه (هغه سبّت لويه ورځ وه) له
٣٢ پيلاطُس نه ئې وغوښت چه دَ دوي حپي مات کړي شي او يوړي شي ٣٢ او

سپاهیان راغلل او دَ ورنبي خپي او دَ هغه بل سړي چه ورسره په صَلیب
شوي ؤ ماتِ کړي ۳۳ لیکن چه یسوع ته راغلل او وئي لید چه دي مړ شوي ۳۳
دي خپي ئي ماتِ نه کړې ۳۴ لیکن یو له سپاهیانو نه په نیزي په اړخ ۳۴
سوري کړ او سمدستي وِیني او اوبه تري راووتي ۳۵ او هغه چه ولید ۳۵
شاهدي ئي ورکړه او شاهدي دَ هغه په رښتیا ده او هغه پوهیږي چه
رښتیا وائي تاچه تاسي هم ایمان راوړئ ۳۶ ځکه دا کارونه واقع شول چه ۳۶
صَحِیفه پوره شي چه یو هډوکي دَده به مات نه شي ۳۷ او بیا بله ۳۷
صَحِیفه وائي چه هغوي چه دي ئي سوري کړ ؤ به ئي ویني
۳۸ پس له دي یُوسف دَ اَرِیماتِیي چه یو له شاګردانو دَ یسوع وه ۳۸
لیکن له ویري دَ یَهُودیانو پټ پیلاطُوس ته ئي خواست وکړ چه دَ یسوع
جُسّه یوسي او پیلاطُوس اِذن ورکړ نو دي راغي او دَ یسوع جُسه ئي
یووړه ۳۹ او نِقودِیمُس هم راغي هغه چه په خوا په شپي کښ راغلی وه ۳۹
او تخمیناً یو مَن مُر له عودو سره ګډ شوي ئي راوړل ۴۰ نو جُسه دَ یسوع ۴۰
ئي یووړه او په خوشبوئیو سره ئي لکه چه طریقه دَ یَهُودیانو دَ ښخولو ده په
کَفَن کښ ئي ونغښت ۴۱ او په هغه ځاي کښ چه په صَلیب کړي ئي وه یو ۴۱
باغ وه او په هغه باغ کښ یو نوي قبر وه چه په هغه کښ هیچري څوک ایښي
شوي نه وه ۴۲ نو هلته په سبَب دَ تیارئ دَ یَهُودیانو یسوع ئي کښیښود (چه ۴۲
هغه قبر نژدي وه) ✣

## شلم باب

۱ او دَ هفتي په ورنبئ (ورځ) مریمه مجدلِیني په وقت دَ سحر چه لا تیاره ۱
وه قبر ته راغله او وئي لید چه کاڼي له قبرَ یوړلي شوي دي ۲ بیا وزغلیده ۲
او شمعون پطرُس او هغه بل شاګرد ته ئي چه یسوع مِینه پري کوله
وراغله او ور ته ئي وویل چه خداوند ئي له قبرَ وړي دي او نه پوهیږو
چه کوم ځاي ئي ایښی دي ۳ نو پطرُس او هغه بل شاګرد بهر راووتل او دَ ۳
قبر خوا ته وراغلل ۴ او دوي دواړه سره وزغلیدل او هغه بل شاګرد له ۴

۵ پَطرَس دِير جَلت وزغلید ۵ او اوّل قبر ته ورسیده او ښِيت شه چه
۶ وني کښل کَفن ئي پروت ولید لیکن ورننه نه وت ۶ بیا شَمعُون پَطرَس
۷ هم ورپسي راغي او قبر ته ورننه وت او کَفَن ئي پروت ولید ۷ او رومال
چه په سر ئي ؤه وني لید چه له کَفَن سره نه وه بلکه بیل یو ځاي تَت
۸ کړي پروت وه ۸ بیا هغه بل شاګرد چه ورمبي قبر ته ورغلي وه هم ور
۹ ننه وت او وني لید او ایمان ئي راوړ ۹ ولي چه لا تر اوسَ په صحیفي نه
۱۰ وه پوهیدلي چه ده له بایده وه چه له مړو پورته شي ۱۰ بیا شاګردان خپلو
کورونو ته بیرته وګرزیدل
۱۱ ۱۱ لیکن مریمه قبر څخه په ژړا ولاړه وه او چه په ژړا وه نو ټیټه
۱۲ شوه او قبر کښ ئي نظر وکړ ۱۲ او دوه فرښتي سپیني جامي آغوستي
یَوه په ځاي دَ سر بله په ځاي دَ پښو په هغه ځاي چه جُسّه دَ یسوع
پِښي شَوي وَه ناستي ئي ولیدلي هغو دي ته وویل اي ښځي ولي ژاړي
۱۳ ۱۳ دي ویل ځکه چه ځما خاوند ئي وړي دَي او نه پوهیږم چه کوم ځاي
۱۴ ئي پِښَي دي ۱۴ او چه دا خبره ئي وکړه په وروستو ئي وکتل او یسوع
۱۵ ئي ولاړ ولید او وئي نه پیژاند چه یسوع دَي ۱۵ یسوع ورته ووِ اي
ښځي ته ولي ژاړي څوک لټوي په هغه ئي دَ باغوان ګُمان وکړ او ورته ئي
ووِ اي خاونده که هغه تا وړي وِي نو ما ته ووایه چه هغه دِ چرته
۱۶ پِښَي دَي چه زه ئي یوسم ۱۶ یسوع ورته ووِ مریمي نو هغه په بیرته
۱۷ وجاروته او په عِبرانِي کښ ورته وویل رَبُونِي یعني اي اُستاذه ۱۷ یسوع
ورته وویل چه لاس مه راوړه ځکه چه لا تر اوسَ خپل پلار ته
نه یم ختلي بلکه ځما ورونړو ته لاړه شه او ور ته ووایه چه زه خپل
پلار له او ستاسو پلار له او خپل اَللّه ته او ستاسو اَللّه ته خیژم
۱۸ ۱۸ نو مریمه مَجدَلِیني راغله او شاګردان ئي خبر کړه چه ما خداوند
لیدلي دي او چه دا هسي ئي راته ویلي دِي
۱۹ ۱۹ بیا هم هغه ورځ چه دَ هَفتي ورمبَيِ ورځ وه په وقت دَ نمانبام

چه دروازي دَ هغه ځاي چه شاګردان ني په کښې وُو له ويرې دَ يهوديانو
بندي شوي وي يسوع راغي او په مينځ کښې ودريده او ورته ني ووِ
۲۰ چه اَلسَّلامُ عَلَيکُمْ ۲۰ او چه داسي ني ووِ لاس او اَړخ خپل ني هغو ته
۲۱ ښکاره کړِ نو چه شاګردانو خداوند وليده خوشحال شول ۲۱ يسوع بيا ور
ته ووِ چه اَلسَّلامُ عَلَيکُمْ لکه چه زه پلار را واستولم زه هم تاسو اَستوم
۲۲ ۲۲ او چه دا ني ووِ نو په هغو ني دَم پوه کړِ او ور ته ني وويل چه
۲۳ رُوحُ الْقُدُس واخلئِ ۲۳ دَ هر چا ګناهونه چه تاسي حفوه کړئِ هغو ته عفوه
کړې شوي دِي دَ هر چا ګناهونه چه تاسي وساتئِ نو ساتلي شوي دِي
۲۴ ۲۴ او توما چه يَو له هغو دولسو وه چه دِدُمُس ور ته ويلي
۲۵ شه هغه وقت چه يسوع راغي له هغو سره نه وه ۲۵ بيا نورو شاګردانو
ور ته وويل چه مونږ خداوند ليدلي دَي ده هغو ته وويل څو چه زه
ښخښې دَ ميخونو دَده په لاسونو کښې و نه وينم او زه خپلې ګوتې دَ ميخونو
په ښخښه کښې کښې نه ږدم او دَ هغه پهٔ اَړخ کښې خپل لاس کښې نه ږدم
ايمان به را نه وړم
۲۶ ۲۶ او پس له اَتو ورځو شاګردان بيا دننه وُو او توما ور سره
وه او دروازې بندې وې يسوع راغي او په مينځ کښې ودريده و ني ويل
۲۷ اَلسَّلامُ عَلَيکُمْ ۲۷ بيا توما ته ني وويل خپله ګوته را نژدې کړه او څما
لاسونه وګوره او خپل لاس را نژدې کړه او څما په اَړخ ني کيږده او
۲۸ بې ايمانَ مه شه بلکه ايمان دار ۲۸ توما په ځواب کښې ور ته
۲۹ ووِ اي څما خداونده او اي څما اَلله ۲۹ يسوع ور ته وويل چه زه دِ وليدم
ايمان دِ راوړ مبارک هغوي دِي چه نه ويني او ايمان ني راوړ
۳۰ ۳۰ او يسوع نورې ډيرې ښخښې دَ شاګردانو دَ وړاندِ وکړې چه په دې
کتاب کښې ليکلي شوي نه دِي ليکن دا ځينونه ليکلي شوي دِي تا چه
ايمان راوړئِ چه يسوع مسيح اِبنُ الله دَي او په ايمان راوړو سره به
ابدي ژوندون بيا موئِ ✤

# یو ویشم باب

۱ آپس له دي یسوع بیا دَ طبریاس په دریاب خپل ځان شاګردانو
۲ ته ښکاره که او په دي شان ئي ښکاره کړ ۲ چه شمعون پطرس او
توما چه هغه ته دِدمس ویلي شي او ناتانائیل چه له قانا دَ جلیل
وه او زامن دَ زبدي او دَ هغه له شاګردانو دوه کسه نور یوځاي وُو
۳ ۳ شمعون پطرس هغو ته ووِ چه زه دَ کبانو ښکار ته ځم دوي ور
ته وویل چه مونږ هم درسره ځو نو بهر ته لاړل او زر په بیړئ
۴ وختل او په هغه شپه ئي هیڅ و نه نیول ۴ او چه صبا شه یسوع په
۵ غاړه ولاړ وه لیکن شاګردان ئي پوه نه شول چه یسوع دَي ۵ نو یسوع
هغو ته وویل اي هلکانو څه دَخوراک څیز لرئ ځواب ئي ورکړ چه نه
۶ ۶ هغو ته ئي ووِ چه دَ بیړئ په ښي طرف جال واچوئ او بیا به مومئ
۷ نو وائي چاوه او دَ کبانو له ډیروالي نه ئي نه شه راښکلي ۷ نو هغه شاګرد
چه یسوع ورسره مینه کوله پطرس ته ئي وویل چه خداوند دَي نو
شمعون پطرس چه واوریدل چه خداوند دي خلقه ئي لنګ کړه ځکه
۸ چه برمنډ وه او ځان ئي په دریاب کښ واچاوه ۸ او نور شاګردان
په بیړئ کښ راغلل او دَ کبانو جال ئي راکښه (ځکه چه له وچي نه
۹ لري وُو بلکه په قدر دَ دوه سوه لاسو) ۹ چه وچي ته کوز شول
۱۰ دَ سکرو اور ئي ولید او کبان پري پرتي او ډوډئ ۱۰ یسوع ور ته ووِ
۱۱ له کبانو نه چه اوس مو نیولي دي څه راوړئ ۱۱ شمعون پطرس لاړ
جال ئي له یو سل دري پنځوسو لویو کبانو نه ډک شوي زمکي ته ئي
۱۲ راکښه او سره له دي چه ډیر وُو جال و نه شلیده ۱۲ یسوع هغو
ته وویل راشئ ناشته وخورئ او هیچا له شاګردانو زړه ورتیا و نه کړه
چه تِه وپوښتي چه ته څوک یي ځکه چه پوه شوي وُو چه خداوند دَي
۱۳ ۱۳ نو یسوع راغي او ډوډئ واخسته هغو ته ئي ورکړه او دغه سي

کبان ١٤ دا دريم وار دي چه يسوع پس له پورته کيدلو له مړيونه ځان ١٤
شاګردانو ته ښکاره که
١٥ بيا پس له ناشتي خوړلو نه يسوع شَمْعُون پَطْرُس ته ووِ ١٥
چه اي شَمْعُونَ زوي دَ يوانه ته ما له دوي نه زيات دوست لري
څه ؟ ور ته ئي ووِ هو اي خداونده ته پوهيږي چه زه له تا سره مِينه
لرم ور ته ئي وويل څما ګډوري څروه ١٦ بيا دوباره ئي ورته وويل چه ١٦
اي شَمْعُون زوي دَ يوانه ما دوست لري څه ؟ ور ته ئي وويل هو
اي خداونده ته پوهيږي چه زه له تا سره مِينه لرم ور ته ئي ووِ چه
څما دَ ګډو شپني کوَه ١٧ بيا دريم وار ئي ورته وويل اي شَمْعُون ١٧
زوي دَ يوانه ته له ما سره مِينه لري څه ؟ پَطْرُس غمجن شه چه
دريم وار ئي ور ته ووِ چه ته له ما سره مِينه لري څه ؟ نو ده ور
ته وويل اي خداونده ته په هر څه واقف يي ته پوهيږي چه زه در
سره مِينه لرم يسوع ور ته وويل څما ګډي څروه ١٨ زه رښتيا رښتيا ١٨
در ته وايم هغه وقت چه ته ځوان وي خپله ملا به دِ تړله او هر ځاي
ته چه به دِ غوښته و به ګرزيدلي ليکن چه زوړ شي خپل لاسونه به
وغزوي او بل څوک به دِ ملا وتړي او هغه ځاي ته چه نه غواړي
بو به دِ څي ١٩ دا خبره ئي وکړه چه اشارت ورکه چه په څه قسم مرګ به ١٩
دَ الله جلال ورکړي او چه دا ئي ووِ ور ته ئي وويل چه په ما پسي
شه ٢٠ بيا پَطْرُس مخ ګرزولي او هغه بل شاګرد ئي وليد چه يسوع ٢٠
ور سره مِينه کوله چه په ورستو ئي راته او دَ ماښام په ډوډيِ
ئي دَ هغه په سِينه ور پروت وه ويلي ئي وُو اي خداونده هغه
څوک دي چه تا سپاري ٢١ له دي سببَ پَطْرُس چه هغه وليد نو ٢١
يسوع ته ئي وويل چه اي خداونده هغه به څه شي ٢٢ يسوع ور ٢٢
ته ووِ که زه وغواړم چه دي څما تر راتلو پوري پاتي شي ستا پري
څه ؟ ته راپسي شه ٢٣ بيا دا خبره په ورونړو کښ مشهوره شوه چه ٢٣

هغه شاگرد به نه مرِي ليکن يسوع ور ته ويلي نه وه چه نه به مرِي
بلکه که زه وغواړم چه دي څما تر راتلو پوري پاتي شي ستا پري څه ؟
۲۴ ۲۴ دا هغه شاگرد دي چه په باب دَدي څيزونو شاهدي ورکوي
او هاني وليکل او مونږ پوهيږو چه دَده شاهدي رښتيا ده
۲۵ ۲۵ او نور کارونه ډير دِي چه يسوع وکړل که يَو يَو وليکلي شِي
گمان کوم چه دَ هغو کتابونه چه وليکلي شِي په درست عالم کښ به
ځاي نه شِي ❋

# اعمال دَ رسولانو

## اول باب

۱ هغه اول کلام مِ تصنيف کړ اي ثاؤفيلُسَ دَ هغو ټولو ځيزونو په ۱
حق کښ چه يسوع ئې په عمل کولو او په تعليم ورکولو شروع وکړه ۲ تر هغي ۲
ورځي پوري چه ده هغو غوره کړي شويو رسولانو ته په رُوحُ الْقُدُس حکم
ورکړ پورته کړي شه ۳ او په هغوي هم پس له ډېر زحمت زغملو نه خپل ۳
ځان ژوندي ښکاره کړ په ډېرو دليلونو سره چه څلوېښت ورځي دوي
ته ظاهر کيده او دَ الله دَ بادشاهۍ له ځيزونو ئې خبره کوله ۴ اوچه له ۴
دوي سره يوځاي شه نو دوي ته ئې حکم وکړ چه له اورشليم نه مه وځئ
بلکه منتظر دَ هغي وعدي دَ پلار شئ چه له ما نه مو اوريدلي ده ۵ چه ۵
يُوحنّا په اوبو بپتسما ورکوله ليکن تاسي به پس له لږو ورځو په رُوحُ الْقُدُسَ
بپتسما بيامومئ

۶ نوچه دوي جمع وُو له ده نه ئې پوښتنه وکړه و ئې ويل ګنړه اي ۶
خداونده ته په دي وخت کښ بادشاهت دَ اسرائيل بيا ورکرزوي څه ؟
۷ نو ده ورته وويل چه تاسو له نشته چه وپيژنئ هغه زماني او وقتونه ۷
چه پلار په خپل قدرت کښ ايښي دي ۸ ليکن تاسي به قُوّت بيامومئ ۸
هرکله چه رُوحُ الْقُدُس درباندِ نازل شي او ځما شاهدان به شئ په اورشليم
او په ټوله يهوديه کښ او په سامريه او ترحدونو دَ زمکي پوري ۹ او چه ۹
دا ئې وو ويلي لا کتل چه پورته کړي شه او دَدوي له سترګو نه اوريځي
ونيو ۱۰ اوچه دوي آسمان ته دَده په تللو څير کاوه نو دوه سړي سپين ۱۰
دروېي دوي څخه ودريدل ۱۱ او وئې ويل چه اي دَ جليل سړو څله ولاړ يئ ۱۱
دَ اسمان په طرف ګورئ هم دغه يسوع چه له تاسي نه آسمان ته پورته
کړي شه بيا به دغسي راشي لکه چه دي مو آسمان ته تلونکي وليد

۱۲ ۱۲ هغه وقت دوي اورشليم ته وچاروتل له هغه غره نه چه زيتون
باله شي چه اورشليم ته نژدې دي په قدر دَ سفر دَ ورځي دَ سبّت -
۱۳ ۱۳ او چه ننوتل بالاخانې ته وختل چه هلته پطرس او يوحنّا او يعقوب
او اندرياس او فيلپس او توما او برتولما او متّي او يعقوب زوي دَ حلفي
۱۴ او شمعون غيرتناک او يهودا ورور دَ يعقوب اوسيدل ۱۴ او دا ټول له ښځو
سره او له مريمي مور دَ يسوع او دَده له ورونړو سره په يو زړه په دُعا
کولو لګيا وُو

۱۵ ۱۵ او په دغو ورځو کښ پطرس په مينځ دَ ورونړو کښ ودريده او
۱۶ وئې ويل (شمار دَ نومونو دَ ټولي قريب يو سل شل وُو) ۱۶ اي سړيو ورونړو
بايده وُو چه هغه صحيفه پوره شي چه رُوحُ الْقُدُس په خولي دَ داؤد وړاند
۱۷ وويله په حق دَ يهودا چه ښيُونکي دَ نيونکو دَ يسوع شه ۱۷ چه دي له مونږ
۱۸ سره و شميرلي شه او په دي خدمت کښ ئې حصه بيامونده ۱۸ او ده په
اجرت دَ بي ايمانئ خپلي يو پټي واخست او پرمخ پريوت په مينځ وچاود
۱۹ او ټولي کلمي ئې توي شولي ۱۹ او دا ټولو اوسيدونکو دَ اورشليم ته معلومه
شوه داسي چه هغه پټي دَدوي په ژبه حَقَلْ دَمَا يعني دَ وينو پټي
۲۰ وبللي شه ۲۰ ځکه چه دَ زبور په کتاب کښ ليکلي دِي چه

کور دَده دِ خراب شي
او اوسيدونکي دِ په کښ نه وِي
او دَده منصب دِ بل څوک واخلي

۲۱ ۲۱ نو بايد دِي چه له هغو سړو نه چه څمونږ ملګري وُو په هغه ټول
۲۲ وقت کښ چه خداوند يسوع له مونږ سره ننوتل او بهر وتل کول ۲۲ دَ
يُوحنّا له بپتسما نه تر هغي ورځي پوري چه له مونږ نه پورته کړي شه
۲۳ له مونږ سره دِ يو له دغو نه دَده په قيامت شاهد شي ۲۳ نو دوه تنه ئې
ودرول يوسف مسمّیٰ په برسابا چه په جوستُس مشهور وه او متياس
۲۴ ۲۴ او دُعائې وکړه وئې ويل اي خداونده چه تهٔ دَ ټولو په زړونو پوهيدونکي

يِي وبنيه چه له دغو دوو نه دِ کوم يو غوره کړي دي ٢٥ تاچه ځاي دري خدمت ٢٥
او دَ رسالت واخلِي چه يهودا ترِ پرِيوت چه خپل ځاي له لاړ شِي ٢٦ نو په ٢٦
هغو ئِ هِسک واچاوه او هِسک په متياس پرِيوت نو دغه له يوولسو
رسولانو سره وشميرلي شه ❊

# دويم باب

١ اوچه دَ پَنطِکاست ورځ ورسيدله دوي ټول په يوه زړه سره يوځاي ١
وُو ٢ چه ناڅاپه يو آواز لکه دَ تُند باد الوتلو آواز له آسمانَ وشه او ٢
هغه ټول کور چه دوي په کښ ناست وُو ډک ئي کړ ٣ او ويشلي شوي ژبي ٣
لکه دَ اور په دوي ظاهري شوي او په هر يوه له هغوي نه قراري شوي ٤ او ٤
ټول له رُوحُ اُلقُدُسَ ډک شول او په نوروژبو لکه چه رُوح به دوي ته
بښول په ويلو ښر شول
٥ او په اورشليم کښ يهوديانِ ديندار سړِي وُو له هرهِ قومَ چه ٥
دَ آسمان دَ لاندِ دِي ٦ اوچه دا آواز وشو نو ټولِي جمع شول اوحيران ٦
شول ځکه چه هر يوه واوريدل چه هغوي دَدوي په ژبي خبري کولي ٧ او ٧
ټول هک پک شول او تعجب ئي کاوه يو له بله ئي وويل گوره کنړِي دغه ټول
خبري کونکي جليليان نه دِي څه؟ ٨ نو څرنګ له موږ نه هر يو هغه خپله ٨
ژبه اَورُو چه په هغي کښ پيدا شوِي يُو ٩ پَارتِيان او مَادِيان او عَلاَمِيان ٩
او استوږي دَ مسوپتاميه اودَ يهوديي او کپَدُوکيان اودَ پَنطَس او دَ
آسيا ١٠ اودَ فرِيجِيَه او دَ پَمفُلِيَه او دَ مِصَر او دَ اطرافو دَ لِبْيا چه له ١٠
قِيرِوان پيوست دِي او مسافران دَ رُوم دَ يهودو او نوِي يهوديانو ١١ او ١١
دَ قريتانو او دَ عربو دغه موږ اَورُو چه څموږ په ژبو دَ الله په بزرګيو خبري
کوِي ١٢ نو ټول حيران شول او وويدل يو له بله ئي وويل چه دا به څه ١٢
رنګه شِي ١٣ او ځينو ټوقي کولي ويل ئي چه له تازه شرابو نه ډک شوِي دِي ❊ ١٣
١٤ نو پَطرَس له هغو يوولسو سره ودريده او آواز ئي اوچت کړ او ١٤
هغوي ته ئي ووِ اي يهوديانو سړو او ټولو اوسيدونکو دَ اورشليم دا دِ

۱۵ تاسي نه معلوم وِي او ثما خبري ته غوږ ونيسئ ۱۵ ځکه چه دغه مست نه دِي
۱۶ لکه چه ستاسو ګمان دي ولي چه دريم ساعت دَ ورځي دي ۱۶ بلکه دا هغه
۱۷ دِي چه يوئيل نبي ويلي دِي ۱۷ چه

الله وايي چه په آخرو ورځو کښ به داسي وشي
چه زه به له خپل رُوح نه په ټول بشر توي کړم
او ستاسو رامن او لُونړه به نَبوّت کوِي
او ستاسو ځوانان به رويا وينِي
او ستاسو زاړه به خوبونه

۱۸ اوُ هم په مريونو او په وينځو خپلو به په هغو ورځو کښ
له خپل رُوح نه توي کړم او دوي به نبوّت کوِي
۱۹ او په آسمان کښ به له پاسَ عجائبات ورکوم
او له لاندِ نه به په زمکه کښ نخښي
وِينِي او اور او بُخار دَ لوګي
۲۰ نمر به په تياره
او سپوږمئ به په وينو بدله شي
وړاندِ له راتلو دَ خداوند دَ ورځي
هغي عظيمي او مشهوري ورځي

۲۱ او داسي به وِي چه هرڅوک چه دَ خداوند په نُوم دعا کوِي خلاص به
شِي
۲۲ اي اسرائيلو سړو دا خبري واورئِ يسوع هغه ناصري يو سړي
وُه چه تاسو ته دَ الله له جانبَ ظاهر کړي شه له قوتونو او له عجائبو او
له نخښو سره چه الله دَده په لاس ستاسو په مينځ کښ وکړي لکه چه
۲۳ تاسي پوهيږئِ ۲۳ دغه چه په مقرّري ارادي او وړاندِني علم دَ الله سپارلي
شوي تاسو ونيو او دَ ګناهګارانو په لاسونو سو په صليب کړ او قتل مو کړ
۲۴ ۲۴ هغه چه الله پاڅاوه پرانتونکي دَ دردونو دَ مرګ ځکه چه ممکن نه وه

چه دي پري ښولي پاتي شي ۲۵ ځکه چه داؤد دَده په حق کښ وايي چه ۲۵
ما تل خداوند دَ وړاندِ خپل وليد
چه په ښي لاس ځما دي تا چه و نه خوځيږم
۲۶ دي دپارَ مِ زړه خوشحال شه او ژبي مِ ښادي وکړه ۲۶
بلکه جُسّه ځما به هم په اميد کښ سکونت وکړي
۲۷ ځکه چه ته به ځان ځما په هاديز کښ پري نه بږدي ۲۷
او اذن به ور نه کړي چه قدّوس ستا سخاوالي ووينِي
۲۸ تا دَ ژوندانه لاري را وښيلي ۲۸
او زه دِ له خپل مخ نه په خوښئِ ډک کړم
۲۹ اي سړو ورونړو بانده دِي چه تاسو ته له رئيسه دَ پلرونو دَ داؤد ۲۹
په باب په دلاوريِ سره ووېلي شِي چه هغه وفات شه او ښخ کړي شه
او قبر يُي تر نن ورځي پوري ځمونږ په مينځ کښ دي ۳۰ نوچه دي نبي وه ۳۰
او پوه شه چه الله ده ته قسم خوړلي دي چه له ميوي دَ ملا دَده نه به
په تخت دَده کښينوي ۳۱ هغه له وړاندِ نه وليدل دَ مسيح دَ قيامت په ۳۱
باب يُي ووېل چه نه دَده ځان په هاديز کښ پريښودلي شه او نه جُسّي
دَده سخاکيدل وليدل ۳۲ نو دغه يسوع الله له مړو نه پاځاوه او مونږ ۳۲
ټول پرِ شاهدان يُو ۳۳ او چه په ښي لاس دَ الله پورته کړي شه او ۳۳
وعده دَ رُوحُ القدسِ يُي له پلاره بيامونده نو دغه چه تاسي يُي کوريِ او
اوريِ نوي کړي يُي دي ۳۴ ځکه چه داؤد آسمان ته و نه خوت ليکن پخپله ۳۴
وايي چه
خداوند ځما خداوند ته ووِ چه ته ځما په ښي لاس کښينه
۳۵ ترهغه پوري چه زه ستا دښمنان ستا دَ پښو لاندِ يستونکي کړم ۳۵
۳۶ نو په يقين سرهِ دِ ټول کور دَ اسرائيل پوه شِي چه الله هم دغه يسوع ۳۶
چه تاسو په صليب کړ خداوند او مسيح يُي کړ
۳۷ نوچه هغوي واوريدل نو زړه يُي سوري شه او پطرس او نورو ۳۷

۳۷ رسولانو ته ئي وويل چه اي ورونړو څه وکړو ۳۸ پطرس ور ته وويل توبه
کړئ او هر يو له تاسي نه دِ په نوم دَ يسوع مسيح دَ خطاوي دَ بخښني دَپارَ
۳۹ بپتسما واخلي او عطا دَ روح القدس به واخلئ ۳۹ ځکه چه دا وعده ده ستاسو
دَپارَ او ستاسو دَ فرزندانو دَپارَ او دَ هغو ټولو دَپارَ چه لري دي هغه
۴۰ ټول چه خداوند الله څموني ئي وبولي ۴۰ او په نورو ډيرو خبرو ئي دوي ته
شاهدي ورکړه او وعظ ئي ور ته وکړ وئي ويل چه خپل ځان له دي کږي
۴۱ پيړئ نه خلاص کړئ ۴۱ نو هغو چه کلام دَده قبول کړ بپتسما ئي واخستله
او هغه ورځ په کمان سره دري زره کسان له دوي سره پيوست شول
۴۲ ۴۲ او په تعليم دَ رسولانو کښ او په شراکت کښ دَ ډوډئ په ماتولو
او په عبادت کولو کښ لګيا وه
۴۳ ۴۳ او په هر ځان ويره راغله او ډير عجائبات او نخښي له رسولانو
۴۴ نه وښولي ۴۴ او هغوي ټول چه ايمان ئي راوړي وه په يوځاي وُو او هر
۴۵ څه ئي سره شريک وُو ۴۵ او مال او اسباب خپل ئي خرڅ کاوه او په هريو
۴۶ ئي موافق دَ حاجت دَ هغه ويشه ۴۶ او هره ورځ به په هيکل کښ په
اتفاق سره لګيا وُو او په کورونو کښ به ئي ډوډئ ماتوله او خوراک به
۴۷ ئي په خوښئ او کشاده دلئ سره خوړ ۴۷ او دَ الله حمد ئي کاوه او ټولو
خلقو څخه ئي عزت بياموند او خداوند به خلاصي موندونکي هره ورځ
په کليسيه کښ زياتول ÷

## دريم باب

۱ ۱ او په نهم ساعت دَ نمانځه په وقت پطرس او يوحنا هيکل ته ختل-
۲ ۲ او يو سړي چه له مورَ شل پيدا شوي وه ور به ئي چه هغه به هره ورځ
دَ هيکل په دروازه چه خوب‌صورته ئي بلله کيښنودي تاچه له هغو نه چه
۳ هيکل ته ننه وتل خيرات وغواړي ۳ هغه سړي چه پطرس او يوحنا چه
۴ هيکل ته ننوتونکي وُو وليدل نو خيرات آخستل ئي وغوښتل ۴ نو پطرس
۵ له يوحنا سره ور ته ځير شه وئي ويل چه مونږ ته وګوره ۵ نو دوي ته ئي

وکتل امیدوار وه چه څه ور نه واخلي ٦ پس پطرس وویل چه سپین او سره ٦
زر راسره نشته لیکن هغه څه چه لرم تا ته ئي درکوم دَ یسوع مسیح ناصري په
نوم وګرزه ۷ او ښي لاس ئي ونیو پورته ئي کړ نو في الحال ئي پښي او ښنګري ۷
مضبوط شول ۸ او هغه ټوپ کړ او ودریده او ګرزیدونکي شه او له دوي ۸
سره تلونکي او ګډیدونکي او دَ الله حمد ویونکي هیکل ته ننه وت ۹ او ټولو
خلقو ولید چه دي ته او حمد دَ الله ئي کاوه ۱۰ او وئي پېژاند چه دا ۱۰
هغه دي چه دَ خیرات دَپارَ به دَ هیکل په خوب صورتي دروازي کښ کښیناست
او له هغه نه چه واقع شول له حیرانئ او له بیخودئ نه ډک شول
۱۱ او چه هغه دَ پطرس او دَ یوحنا نیونکي وه نو ټول خلق هغه ۱۱
دالان ته چه دَ سلیمان ئي ورته وایه حیران شوي ور وزغلیدل ۱۲ نو چه ۱۲
پطرس دا ولیدل خلقو ته ئي ځواب ورکړ چه اي اسرائیلو سړو څله په
دي تعجب کوئ او څله راته په خیر ګورئ چه ګویا دا مونږ په خپل قوّت
او په خپلي تقویٰ سره تلونکي کړي دي څه ۱۳ الله دَ ابراهام او دَ اسحاق ۱۳
او دَ یعقوب الله څمونږ دَ نیکونو خپل بنده یسوع لره تمجید ورکړ هغه چه
تاسو وسپاره او دَ پیلاطوس دَ وړاندِ مو انکار ورنه وکړ هغه وقت چه
هغه حکم دَده په خلاصولو کاوه ۱۴ لیکن تاسي له هغه قدّوس او له ۱۴
صادقه انکار وکړ و مو خوښتل چه تاسي ته خوني سړي درو بخښلي شي
۱۵ او سردار دَ ژوندانه مو ووژه هغه چه الله له مړیو پاځاوه او مونږ ۱۵
په دي شاهدان یو ۱۶ او په سبب دَ ایمان په نامه دَده دَ نوم دا کس چه ۱۶
تاسو ئي وینئ او پېژنئ مضبوط کړي دَي هو هغه ایمان چه دَده په
واسطه دي دغه ته ئي دا کامل صحت ستاسي دَ ټولو دَ وړاندِ ورکړ ۱۷ او ۱۷
اوس اي ورونړو زه پوهیږم چه تاسي او هم ستاسي حاکمانو په ناپوهي سره
دا وکړه ۱۸ لیکن الله هغه څیزونه چه په خولي دَ ټولو نبیانو خپلو ئي وړاندِ ۱۸
خبر ورکړ چه دَده مسیح به زحمت ورغي هم هسي پوره شه ۱۹ نو توبه ۱۹
کړئ او وګرزئ چه ګناهونه مو محوه شي او دي دَپار چه وقتونه دَ تازګئ له

۲۰ حضورَ دَ خداوند راشي ۲۰ او يسوع مسيح چه تاسو ته مقرّر شوي وُه درواستوي
۲۱ ۲۱ چه بايده دِي چه آسمان يُ قبول کړي تر زماني دَ برحاليدو دَ هرڅيز
لکه چه الله له ابتدا دَ عالم نه په خولي دَ ټولو نبيانو مقدّسو خپلو وويل
۲۲ ۲۲ ځکه چه موسیٰ پلرونو ته ووِ چه خداوند الله ستاسو به يو نبي ځما
په شان ستاسو دَ وروڼو له مينځ ستاسو دَپارَ ودروي دَ هغه اَوريُ
۲۳ په هرڅه چه تاسو ته به وائِي ۲۳ او داسي به وشي چه هر ځان چه دَ
۲۴ هغه نبي نه اوري له خلقو به پريکړي شي ۲۴ او ټول نبيان هم له
سموئيل نه او هغوي ټول چه وروسته راغلي هر هغه چه خبري وکړي
۲۵ دَدي ورځو يُ خبر ورکړ ۲۵ تاسي زامن دَ نبيانو او دَ هغي وعدي يُ چه
الله ستاسو له پلرونو سره وکړه چه ابراهام ته يُ وويل چه ستا له نسلَ
۲۶ به ټولي قبيلي دَ زمکي مبارکي شي ۲۶ ستاسو دَپارَ الله بنده خپل اوّل پورته
کړ در وا يُ ستاوه چه تاسو ته برکت درکړي په ګرزولو دَ هر يوه له
شرارتونو خپلو *

# څلورم باب

۱ ۱ اوچه دوي له خلقو سره خبره کوله نو کوهنان او صوبدار دَ هيکل
۲ او صدّوقيان وربانذِ راغلل ۲ ځکه چه پريشان وُو په دي چه دوي
قوم ته تعليم ورکاوه او دَ پاڅيدلو له مړيو نه دَ يسوع يُ خبر ورکاوه
۳ ۳ نو لاسونه يُ پرِ واچول او تر صبا پوري يُ په بند کښ کړل ځکه چه
۴ لا ماښام وه ۴ او ډيرو له هغو نه چه کلام يُ واوريده ايمان يُ راوړ
او شمار دَ سړيو قريب پنځه زره شه
۵ ۵ او په صبا داسي وشول چه سرداران او سپين ږيري او کاتبان
۶ دَدوي په اورشليم کښ جمع شول ۶ او حنّان سردار کوهن او قيافا
او يوحنّا او اسکندر او هغه ټول کسان چه دَ سردار کوهن له قبيلي
۷ وُو ۷ اوچه دوي دواړه يُ په مينځ کښ ودرول پوښتنه يُ تر وکړه چه
۸ تاسي په کوم قوّت او په کوم نوم دا کار کړي دي ۸ هغه وقت پطرس

له رُوحُ القُدُسَ ډک شوي دوي ته ئي ووِ چه اي سردارانو دَ خلقو او
۹ سپين‌ږيرو ۹ که نن ورځ له مونږ نه پوښتنه کيږي په حق دَ انسان کښ چه
۱۰ ضعيف سړي سره وشوه چه په څه سبب ئي شفا موندلي ده ۱۰ نو تاسي
ټولو او ټولو خلقو دَ اسرائيل ته دِ معلومه وِي چه په نُوم دَ يسوع مسيح
ناصِرِي چه تاسو په صليب کړ او الله له مړيو پاڅاوه له هغه نه دا سړي
۱۱ ستاسو دَ وړاندِ تندرست ولاړ دي ۱۱ دا هغه کاڼي دي چه تاسو معمارانو
۱۲ سپک کړي دي او اوس سر دَ کُنج شوي دي ۱۲ او بي له ده په هيڅ يوه
خلاصي نشته ځکه چه بل نُوم دَ آسمان دَ لاندِ دَ سړو په مينځ کښ ورکړي
شوي نه دي چه په هغه باندِ مونږ خلاص شُو
۱۳ ۱۳ او چه زړورتوب دَ پطرس او دَ يُوحنّا ئي وليد او و ئي پيژاندل
چه بي‌علمَ او امِيان سړِي دِي تعجب ئي وکړ او و ئي پيژاندل چه له يسوع
۱۴ سره وُو ۱۴ او چه هغه سړي ئي له دوي سره ولاړ وليد چه شفائي موندلي
۱۵ وَه نو له ځوابَ ئي عاجز شول ۱۵ نو حکم ئي وکړ چه له جمعي نه دِ بهر
۱۶ ويستلي شِي او يو له بله ئي مصلحت وکړ و ئي ويل ۱۶ چه له دغو دوو
سړو سره څه وکړو چه ټولو ساکنانو دَ اورشليم ته ځرګند شول. چه
۱۷ ظاهري نخښي ورنه وشوي او انکار ئي ورنه کولي نه شُو ۱۷ ليکن چه
دَ خلقو په مينځ کښ زيات شُهرت و نه مومِي دوي به ډير و ترټو چه
۱۸ بل وار په دي نُوم له چا سره خبره ونه کړي ۱۸ نو هغوي ئي راوبلل او تاکيد
ئي وکړ چه هرګز ئي خبره و نه کړِئِ او نه دَ يسوع په نُوم تعليم ورکړِئ
۱۹ ۱۹ نو پطرس او يُوحنّا په ځواب کښ ورته وويل چه په نزد دَ الله دا
حقه دَه چه ستاسو خبره دَ الله له خبري نه زياته واورو څه ؟ تاسو
۲۰ انصاف وکړئِ ۲۰ ځکه چه مونږ له ممکن نه دِي څه ؟ چه په هغوچه ليدلي
۲۱ او اوريدلِي مو دِي خبره ور نه کړُو ۲۱ اوچه ډير ئي وترټل نو هغوي ئي آزاد
کړل چه هيڅ ئي و نه موندل چه دوي دَ خلقو په سبب په عذاب کړي ځکه
۲۲ چه ټولو په هغه چه شوي وه تمجيد دَ الله ئي وکړ ۲۲ ولي چه هغه سړي

چه دا معجزهِ دَ شفا په کښ شوي وه له څلویښتو کالو نه زیات وه
۲۳ ۲۳او چه آزاد شول خپلو ملګرو ته راغله او هغوي ئې په هغه څه چه
۲۴ سردار کوهنانو او سپین‌ږیریو ورته ویلي وُو خبر کړل ۲۴ چه دائې واوریدل
په یو زړهِ سره آواز خپل ئې الله ته پورته کړوئ ویل چه ای خداونده
ته جوړونکي یي دَ آسمان او دَ زمکي او دَ دریاب او دَ هغه څه چه په
۲۵ هغو کښ دِي ۲۵ په رُوحُ القُدُس سره دِ وِوِ چه
وِلي غیر قومونه جګړي کوِي
اوخلقي عبث فکرونه کوِي
۲٦ ۲٦ بادشاهان دَ زمکي پورته شول
اوحاکمان یو له بله جمع شول
په خلاف دَ خداوند او په خلاف دَ مسیح دده
۲۷ ۲۷ ځکه چه په حقیقت سره په دي ښهر کښ ستا په قدُّوس بنده یسوع
چه تا مسح کړِ هیرودیس او پنطس پیلاطُس له قومونو او له امتونو دَ
۲۸ اسرائیل سره جمع شول ۲۸ تاچه هغه څه چه ستا لاس او ستا ارادي له
۲۹ وړاندِ نه مقرّر کړي وُو وکړِي ۲۹ او اوس اي خداونده دَدوي ترټلو ته نظر
وکړهِ او غلامانو خپلو ته دا ورکړِ چه په ټوله زړورتیا سره ستا کلام ووایِي
۳۰ ۳۰ سره له اوږدولو دَ لاس ستا دَ شفا ورکولو دَپارَ اوچه نخښي او معجزي
۳۱ ستا دَ قُدُّوس بنده یسوع په نوم جارِي شِي ۳۱او چه دوي دُعا کوله نو هغه
ځاي چه دوي په کښ جمع وُو وخوزیده او ټول له رُوحُ القُدُسَ ډک شول
کلام الله ئې په زړورتوب ووایه
۳۲ ۳۲ او هغه ټول مؤمنان یو زړه او یو ځان وُو او یو نه ویل چه یو
۳۳ شَي دَده له مالَ دَده دي بلکه ټول څیزونه ئې سره شریک وُو ۳۳ اورسولانو
په لوی قوّت سره په ژوندِي پورته کیدلو دَ یسوع خداوند شاهدِي ورکوله په
۳۴ هغو ټولو لوي فضل وه ۳۴ ځکه چه په هغو کښ هیڅ یو محتاج نه وه ځکه
هغه چه مالک دَ ځمکو یا دَ کورونو وُو هغه به ئې خرڅول قیمت دَ خرڅ شوِي

۳۵ به ئي راوړ ۳۵ او دَ رسولانو پښو ښخه به ئي کیښودل او دَ هر يو دَ احتياج په قدر
به ئي وېشه
۳۶ ۳۶ او يُوسف چه رسولانو به بَرنابا بعني زوي دَ وعظ نُوم ئي پرِ ايښي
وه او هغه لاوِي دَ قبرِسِي له فرقي وَه هغه پټي چه لاره ئي خرخ ئي کړِ
روپۍ دَ هغه ئي راوړي او دَ رسولانو پښو ښخه ئي کيښودلي +

# پنځم باب

۱، ۲ ۱ او يو سړي حَنانِيانوُم ئي او سَفِيري ښځي ئي ملک خرخ کړ ۲ اوځه قدر
ئي له روپيو نه پټي کړي او ښځه پرِ خبرِه وَه اوځه ئي له هغو راوړي
۳ دَ رسولانو پښو ښخه ئي کيښودلي ۳ نو پَطرَس ووِ اي حَنانِيا ځله شيطان
ستا زړه ډک کړ چه له رُوحُ القُدُس سره دروغ کوي او دَ پټِي له روپيو
۴ نه پټي يږدِي ۴ کنرِه هغه چه تا ځخه وي ستا نه وي څه ؟ اوچه خرخ کړي
شه ستا په اختيار کښ نه وَه څه ؟ داځرنګ دِي چه په خپل زړه کښ دِ
۵ کيښودل تا په انسان دروغ ونه ويل بلکه په الله ۵ اوحَنانِيا چه داخبره واوريدٔ
پريوت سا ئي وختله او لويه وېره په ټولو اوريدونکو دَ دي غالبه شوه -
۶ ۶ او ځوانان پورته شول هغه ئي په کَفَنَ کړ او بهر ئي يوړ او ښخ ئي کړ
۷ ۷ او په ګمان سره دري ساعته تېر شول چه ښځه ئي له حالَ ناخبره
۸ ورننوتله ۸ پَطرَس ورته په ځواب کښ ووِ چه ته راته ووايه چه کنرِه پټي
۹ مو په دومره خرخ کړِ و ئي وِهو په دومره ۹ پَطرَس ورته ووِ چه څه دَپارَ متفق
شوي يئِ چه رُوخ دَ خداوند ازمايئِ ګوره پښي دَ هغو چه ستا ميړه ئي
۱۰ ښخ کړي دي په دروازه دِي او تا به هم بهر يوسِي ۱۰ نو هغه ساعت دَده په
پښو کښ پريوته سا ئي وختله ځوانان چه ورننه وتل هغه ئي مړه بيامونده
۱۱ نو بهر ئي يووړه دَ ميړه په څنګ کښ ئي ښخه کړه ۱۱ نو په ټوله کليسيه او
په ټولو اوريدونکو دَ دي څيزونو لويه وېره پريوته
۱۲ ۱۲ او ډيري ښخني او معجزي په لاس دَ رسولانو دَ خلقو په مينځ کښ
۱۳ جاري شوي او ټول يو زړه په دالان دَ سليمان کښ وُو ۱۳ او هيڅ يوه

لہ نورو نہ زړور توب وِ نہ کړ چہ لہ دوي سرہ پیوست شي لیکن خلقو ئې
١٤ تعظیم کاوہ ١٤ او اکثر مؤمنان چہ خداوند سرہ پیوست شول تولي تولي لہ
١٥ سړو او لہ ښځو ١٥ پہ داسي شان چہ رنځوران ئې بهر هم لاروتہ راویستل
او پہ بسترو او پہ کټونو ئې کیښودل تر هغہ چہ پَطْرَسْ راشي چہ
١٦ کوندِ سوري دَ دہ پہ یوہ دَ دغو پریوزي ١٦ او تولي لہ ښهرونو ګرداګرد
دَ اطرافو دَ اورشلیم راجمع شول رنځوران او عذاب شوي دَ پلیتو ارواحونو
ئې راوړل او تول جوړ شول
١٧ ١٧ او سردار کوهِن پورتہ شہ او هغہ تول چہ ورسرہ وُو (چہ
١٨ طائفي دَ صدوقیانو دِي) او لہ غیرتَ ډک شول ١٨ او پہ رسولانو
١٩ ئې لاس واچول او پہ عامہ بندیخانې کښي ئې بند کړل ١٩ لیکن فرښتہ دَ
خداوند پہ شپہ کښي دروازي دَ بندیخانې پرانتلي او وِ ئې یستل او وِ ئې
٢٠ ویل ٢٠ چہ لاړ شئِ او پہ هیکل کښي ودرېږئ او تولي خبري دَ دي
٢١ ژوندانہ خلقو تہ ووایئِ ٢١ او چہ دوي دا واوریدل نو دَ صباح پہ وقت
هیکل تہ ننہ وتل او تعلیم ئې کاوہ بیا سردار کوهِن راغي او هغوي چہ
ورسرہ وُو صاحبان دَ جرګي او تول سپین ږیري دَ اسرائیلو ئې طلب کړل
٢٢ او بندیخانې تہ ئې واستول چہ رائې ولي ٢٢ لیکن چہ ملازمان ورغلل نو
٢٣ پہ بندیخانې کښي ئې بیا نہ موندل نو را وجاروتل خبر ئې کړل ٢٣ وِئې ویل
چہ بندیخانہ مو پہ ډیري خبرداریِ سرہ بندَ بیاموندہ او پهرہ داران لہ
دروازو بهر ولاړ لیکن چہ پرامونتلہ نو هیڅوک مو دننہ بیا نہ موندل۔
٢٤ ٢٤ لیکن چہ صُوبدار دَ هیکل او سردار کوهینانو دا خبرہ واوریدلہ دَ دوي
٢٥ پہ باب حیران شول چہ دا بہ څہ وشي ٢٥ بیا یَوکس ورتہ راغي خبر ئې
ورکړ چہ ګوريِ هغہ کسان چہ تاسي پہ بندیخانې کښي بند کړل پہ هیکل
٢٦ کښي ولاړ دِي خلقو تہ تعلیم ورکوي ٢٦ نو صُوبدار لہ ملازمانو
سرہ ورغي هغوي ئې راوستل لیکن پہ زور سرہ نہ ځکہ چہ لہ خلقو
٢٧ وېریدل هسي نہ چہ سنګسار شُو ٢٧ او چہ هغوي حاضر کړل پہ جمع

کښې يې ودرول سردار کوهن ورنه پوښتنه وکړه ٢٨ وَ يې ويل چه په تاسو سو ٢٨
ډير تاکيد وکړ چه په دي نوم تعليم مه ورکوئ او گورئ چه تاسي په خپل
تعليم اورشليم ډک کړي دي او غواړئ چه خون دَ هغه سړي په مونږ
راوړئ ٢٩ ليکن پطرس او رسولانو په ځواب کښې وويل بايد دي چه اطاعت ٢٩
دَ الله له انسان زيات وشي ٣٠ ځمونږ دَ پلرونو الله هغه يسوع پورته کړ ٣٠
چه تاسي په صليب کړ او مړ موکړ ٣١ هغه الله په ښي لاس خپل پورته ٣١
کړ سردار او نجات ورکونکي يې کړ تا چه اسرائيلو ته توبه او مغفرت
دَ خطاؤ ورکړي ٣٢ او مونږ دَ ده شاهدان يُو په دي څيزونو رُوحُ الْقُدُسْ ٣٢
هم هغه چه الله هغو ټولو ته ورکړي دي چه دَ ده تابعداري کوي
٣٣ چه هغو واوريدل خپه شول مصلحت يې وکړ چه وَ يې وژني ٣٣
٣٤ نو په ټولي کښې يو فريسي سړي گمالائيل نومي چه مُفتي او په نزد دَ ٣٤
ټولو خلقو عزتمند وه پورته شه وَ يې فرمايل چه رسولان دِ يو ساعت بهر
وبستلي شي ٣٥ بيا يې هغو ته ووِ اي اسرائيلو سړو په خپلو ځانو خبردار اوسئ دَ دي ٣٥
سړيو له جهته په هغه کښې چه تاسي يې ورسره کوئ ٣٦ ځکه چه وړاند ٣٦
له دي ورځو تِوداس پورته شه او وَ يې ويل چه زه يو څَی يم او قريب
څلور سوه سړي ورسره پيوسته شول هغه مړ کړي شه او هغه ټول
چه دَ ده تابعداري يې کوله تار په تار او نيست شول ٣٧ او پس له هغه ٣٧
يهودا جليلي دَ اسم نويسئ په ورځو کښې پورته شه او لوي خلق يې په
ځان پسي راکښل نو هغه هم هلاک شه او هغوي ټول چه دَ ده تابعداري
يې کوله پراگنده شول ٣٨ او اوس زه تاسو ته وايم چه له دي سړو نه بيرته ٣٨
شئ او پري يې ږدئ ځکه چه که دا فکر او دا کار له سړي نه وي نو خود
به ونړيږي ٣٩ ليکن که له اَلله وي نو وبه يې نه نړولي شئ هسي نه چه له اللهَ ٣٩
سره جنگ کونکي وموندہ شئ ٤٠ نو دَ ده يې ومنل او رسولان يې راوبلل او ٤٠
په کوړو يې ووهل او حکم يې ورکړ چه بيا دَ يسوع په نُوم خبري مه کوئ
او پري يې ښودل ٤١ او دوي دَ ټولي له مخي نه لاړل خوشحال په دي چه دَ ده ٤١

٤٢ دَ نوُم دَپاره لایق دَ سپک والي وګرزولي شو ٤٢ او هره ورځ به په هیکل او په
کورکښ دَ تعلیم ورکولو او له زیري ورکولو دَ یسوع مسیح نه نه منع کیدل ÷

# شپږم باب

١ آ په دغو ورځو کښ چه شاګردان زیاتیدل نو دَ یونانیانو په عبرانیانو
بانديِ ګنګوسي وشه ځکه چه دَکونډو دَ دوي دَ هري ورځي په خدمت کښ
٢ هیروالي شوي وه ٢ نو هغو دولسو جماعت دِ شاګردانو وباله وئ ویل دا
٣ غوره نه ده چه مونږ کلام دَ الله پریږدو او خدمت دَ خوانچو کوو ٣ دي دَپارَ
اي ورورو تاسي اووه معتبر سړي له رُوحَ او له حکمتَ ډک له خپل مینځ نه
٤ غوره کړئِ چه مونږ ئي په دي کار ودروو ٤ او مونږ به په خپل په دُعا او په
٥ خدمت دَ کلام لګیا اوسو ٥ نو دا خبره دَ ټولو دَ وړاندِ خوښه شوه او اِسْتِیفان
سړي ډک له ایمانه او له رُوحُ القُدُسَ او فیلبُس او پروخورس او نِیکانور
او تیمون او پرمناس او نِیقُولاوُس چه نوي یهودي دَ انطاکیي وه غوره ئي
٦ کړل ٦ او دَ رسولانو دَ وړاندِ ئي ودرول او دُعا ئي وکړه او لاسونه ئي پري
کیښودل
٧ ٧ او کلام دَ الله ترقي وکړه او شمار دَ شاګردانو په اورشلیم کښ ډیر
زیاتیده او ډیر ټولي له کوهینانو تابعدار دَ ایمان شول
٨ ٨ او اِستِیفان چه له فضله او له قوتَ ډک وه لویي معجزي او نښي
٩ ئي په خلقو کښ کولي ٩ او څو تنه له هغي عبادتخاني نه چه دَ لِبِرتِینِیانو او قیریانیانو
او دَ اسکندریانو ورته ویلي شوه او له هغو نه چه له قِلیقیا او له اَسِیي نه
١٠ وُو پورته شول له اِستِیفان سره ئي جګړه کوله ١٠ او هغوي نه توانیدل چه له
هغه حکمتَ او له رُوحَ سره چه ده پرِ خبري کولي ورسره ئي مقابله کړي وي
١١ ١١ هغه وقت څو تنه ئي ولمسول چه وواېي چه مونږ اوریدلي دي چه دغه به
١٢ موسیٰ او په الله دَ کفر خبري کړي ١٢ او دوي خلق او سپین ږیري او کاتبان
١٣ پورته کول او ورباندِ راغلل او وئ نیو جرګي ته ئي راوست ١٣ او دروغژن
شاهدان ئي پرِ ودرول وئي ویل چه دغه سړي له خبرو کولو په خلاف دَ دي

۱۴ مُقَدّس او له توریتَ نه ودرېږي ۱۴ ځکه چه موږ له ده اورېدلي دِي چه
ویل يُ چه دغه یسوع ناصرِي به دا مکان خراب کړِي او هغه رسمونه چه
۱۵ موږ ته موسىٰ سپارلي وُوبدل به يُ کړِي ۱۵ نو ټولو کښیناستونکو دَ جرګي دَ هغه
مخ دَ فرښتي دَ مخ په شان ولید ؛

# اووم باب

۱ ۲ آ نو سردار کوهن ووِ چه کښه دا خبرِي داسې دِي څه ؟ ۲ نو وُ يُ ویل چه
اي سرو وروڼو او پلرونو واورئِ چه ذوالجلال الله په پلار ځموږ
ابراهام ظاهر شه چه په مسوپتامیه کښ وُه پهٔ خوا له اوسیدلو دَ ده
۳ په حاران کښ ۳ او ورته يُ وویل چه له خپل وطنه او له خپلوانو نه
۴ راووزه هغي زمکي ته چه زه يُ درښکاره کړم ورشه ۴ نو دي دَ کلدنیانو
له زمکي ووت او په حاران کښ میشته شه او پس له مرګ دَ پلاره يُ
۵ دي زمکي ته چه اوس تاسي په کښ اوسېږِئ راوست ۵ او هغه ته يُ په دغه
کښ دَ پښو ایښودَلو ځاي هم په میراث ور نه کړِ مګر وعده يُ ورسره
وکړه چه زه به هغه تا ته او پس له تا نه ستا نسل ته په ملکیت درکړم
۶ هغه وقت چه لا اولاد يُ نه وه ۶ او الله داسي ورته وویل چه ستا نسل
به په بیګانه زمکه کښ مسافرِ وِي او څلور سوه کاله به يُ په غلامي
۷ ونیسِي او په عذاب به يُ کړِي ۷ او په هغه قوم چه دوي مریونه کړِي زه به
پرِ حکم وکړم الله وایي او پس له هغه به راووزِي او ما ته به په دي مکان
۸ کښ عبادت کوِي ۸ او دَ سُنّت کولو وعله يُ ورکړه او داسي ترِ اسحاق پیدا
شه په اتمه ورځ يُ سُنّت کړِ او له اسحَقَ یعقوب پیدا شه او له یعقوبَ
۹ دولس سرداران نیکونه ۹ او نیکونو له یُوسف سره غیرت وکړِ هغه يُ په مصر کښ
۱۰ خرڅ کړِ لیکن الله ورسره وه ۱۰ او هغه يُ له ټول زحمتونو دَ هغه خلاص
کړِ په حضور دَ فرعون بادشاه دَ مصر يُ توفیق او حکمت ورکړ چه دي
۱۱ يُ په مصر او په ټول کور خپل حاکم کړِ ۱۱ بیا په ټوله زمکه دَ مصر او
دَ کنعان لوږه او سخته تنګي راغله ترِ دي حده چه ځموږ نیکونو روزِي

۱۲ نه موندله ۱۲ لیکن چه یعقوب واوریدل چه په مصر کښی غله شته ده
۱۳ اوّل وار بيَ خُمونږ پلرونه واستول ۱۳ او په دویم وار یُوسف په ورونړو
۱۴ خپلو ظاهر شه او خاندان دَ یوسف فرعون ته معلوم شه ۱۴ نو یُوسف
واستوه پلار خپل یعقوب او ټول خپلوان ئي چه پنځه اویا تنه وُو راوبلل
۱۵ ۱۶ ۱۵ نو یعقوب مصر ته ورکوز شه دي او خُمونږ نیکونه وفات شول ۱۶ او
هغوي ئي سُکیم ته یوړل په هغي مقبري کښی ئي ښخ کړل چه ابراهام له
۱۷ بنِيِ حَمُور پلار دَ سکیم نه په سپینوزرو اخستي وه ۱۷ اوچه وقت دَ هغي وعدي
چه الله له ابراهام سره ېږ قسم کړي وه نژدي شه خلق په مصر کښی
۱۸ زیاتیدل او ډیر شول ۱۸ تر هغه وقته پوري چه بل بادشاه پورته شه چه
۱۹ یُوسف ئي نه پېژاندهٔ ۱۹ هغه خُمونږ له خاندانه سره نکِي وکړه پلرونه خُمونږ
ئي زهیرول تر هسي حده چه هلکان دَدوي ئي بهر غورزول چه ژوندي
۲۰ پاتي نه شِي ۲۰ او په دغه وقت کښی موسیٰ پیدا شه او الله ته ښایسته
وه او هغه تردريو میاشتو پوري دَ خپل پلار په کور کښی پرورش موندهٔ
۲۱ ۲۱ اوچه وغورزاوه شه نو ذ فرعون لُور واخست او دَ ځان دَپارَ ئي په ځوي والي
۲۲ تربیت کاوه ۲۲ نو موسیٰ په ټول حکمت دَ مصریانو آموخته شه او په
۲۳ اقوالو او افعالو کښی قوِي شه ۲۳ اوچه څلوېښت کالَ دَ عمر ئي پوره شول
نو په زړه کښی ئي وګرزیدل چه دَ بنِيِ اسرائیلو ورونړو خپلو پوښتنه
۲۴ وکړِي ۲۴ اوچه یو مظلوم ئي ولید نو ذ هغه حمایت ئي وکړ اوبدله دَ مظلوم
۲۵ ئي واخستله هغه مصرِي ئي قتل کړ ۲۵ نو ده ګمان وکړ چه دَ هغه
ورونړه به پوه شِي چه الله دَده په لاس دوي ته نجات ورکړ لیکن هغوي
۲۶ ونه پوهیدل ۲۶ او په دویمه ورځ ئي ځان هغوي ته ظاهر کړ چه دوي
جګړه کوله او دوي ئي صلحي ته رابلل وئي ویل اي سړو تاسو ورونړه ئي ځله
۲۷ یو په بل ظلم کوئِ ۲۷ نو هغه چه په خپل همسایه ئي ظلم کاوه لري ئي
۲۸ کړ وئي ویل چه ته چا په مونږ حاکم او قاضِي کړي یي ۲۸ کنړه غواړي چه
۲۹ ما ووژني لکه چه پرون دِ هغه مصرِي وواژه ۲۹ نو موسیٰ په دي خبره

تيښته وکړه او دَ مديان په زمکه کښې مسافر شه . او هلته ئې دوه ځامن
پيدا شول ٣٠ او چه څلوېښت کاله پوره شول دَ سينا دَ غره په بيابان ٣٠
کښې فرښته دَ خداوند په لمبه کښې دَ اورپه بوټي کښې ورته ظاهره شوه
٣١ او چه موسیٰ دا وليدله نو له ننداري ئې تعجب وکړ او چه نژدې ورغې چه ٣١
وئې گوري دَ خداوند آواز ورته وشه ٣٢ چه زه يم الله دَ پلرونو ستا ٣٢
الله دَ ابراهام او دَ اسحاق او دَ يعقوب او موسیٰ ولړزېده او زړه ورتوب
ئې و نه کړ چه ورته وگوري ٣٣ خداوند ده ته ووئيل چه څپلې له پښو ٣٣
خپلو وباسه ځکه چه دغه ځاي چه پر ولاړ ئې مقدسه زمکه ده ٣٤ ما ٣٤
دَ خپلو خلقو مشقت هغه چه په مصر کښې دي وليد او دَ هغو ژړا مې
واوريده او دَ هغو دَ آزادولو دَپارَ راکوز شوم او اوس راشه چه مصرته دې
واستوم ٣٥ دا موسیٰ چه له هغه نه منکر شول و ئې ويل چه ته په مونږ ٣٥
چا حاکم او قاضي کړي يي هغه الله دَ هغو حاکم او خلاصونکي استولي دي
په لاس دَ هغې فرښتي چه په بوټي کښې ورې ظاهره شوه ٣٦ ده هغوي و ٣٦
ويستل چه څلوېښت کاله ئې دَ مصر په زمکه او په بحر احمر او په بيابان
کښې عجائبات او نخښې کولې ٣٧ دا هغه موسیٰ دې چه بني اسرائيلو ته ئې ٣٧
ووئيل چه الله به يو نبي ځما په شان ستاسو دَ ورونړو له مېنځ پاڅوي
٣٨ دا هغه دې چه په جماعت کښې په بيابان کښې له هغې فرښتي سره وُه ٣٨
چه دَ سينا په غره کښې ئې خبري ورسره کولې او ځمونږ له پلرونو سره چه
ژوندَي خبري ئې بياموندلي تاچه مونږ ته ئې راکړي ٣٩ هغه له چه ځمونږ ٣٩
پلرونو و نه غوښتل چه تابعدار ئې شي بلکه رد ئې کړ او په زړونو خپلو مصر
ته وگرزيدل ٤٠ هارون ته ئې ووې چه ته ځمونږ دَپارَ خدايان جوړ کړه چه ٤٠
ځمونږ دَ وړاندې به تلل کوي ځکه چه دغه موسیٰ چه مونږ ئې دَ مصر له زمکي
راويستلو نه پوهيږو چه ور سره څه وشول ٤١ نو په هغو ورځو کښې ئې ٤١
يو سخي جوړ کړ او دَ دغه بت دَپارَ ئې قرباني راوړه او دَ خپلو لاسونو په عملونو
ئې خوشحالي کوله ٤٢ نو الله وجاروت او دوي ئې پرېښول تاچه لښکرو دَ ٤٢

آسمان ته عبادت وکړي لکه چه دَ انبياؤ په صَحِيفو کښ ليکلي دِي
تاسو ما ته ذبحې او قرباني راوړيِ څه ؟
څلويښت کاله مو په بيابان کښ اي دَ اسرائيل کوره
۴۳ ۴۳ بلکه تاسي خيمه دَ مولوک
او ستوري دَ رفان خداي پورته کړه
يعني هغه صورتونه مو جوړ کړل تاچه سجده ورته وکړيِ
او زه له تاسي له بابل نه هغه خوا ته بوزم
۴۴ ۴۴ او خيمه دَ شاهديِ څمونږ له پلرونو سره په بيابان کښ وَه لکه چه ويونکي
۴۵ موسیٰ ته وفرمايل په هغه نمونه چه دِ ليدلي وه جوړه ئي کړه ۴۵ و هغه
څمونږ پلرونو هم ومونده له يوشع سره ئي ننه يسته په ملک دَ هغو قومونو
۴۶ کښ چه الله څمونږ دَ پلرونو له مخ نه وشړل دَ داؤد دَ ورځو پوري ۴۶ دَ الله
له حضور نه ئي فضل بيامومند او درخواست ئي وکه چه يو مسکن دَ يعقوب دَ الله
۴۷ ۴۸ دپاره پيدا کړي ۴۷ ليکن سليمان دَ هغه دپاره کور جوړ کړ ۴۸ ليکن الله تعالیٰ
۴۹ دَ لاسونو په جوړ شويو کښ نه اوسي لکه چه نبي وايي ۴۹ چه
آسمان څما تخت دَي
او زمکه څما دَ پښو تکيه ده
څه رنگ کور به څما دَپاره جوړ کړيِ خداوند وايي
او څما دَ آرام ځاي کوم دَي
۵۰ ۵۰ کنږه څما لاسونو دا ټول څيزونه جوړ نه کړل څه ؟
۵۱ ۵۱ اي گردن‌کشانو او چه په زړونو او په غوږونو نامختونو تاسي مدام له
رُوحُ الْقُدُسَ سره مقابله کويِ لکه چه ستاسي پلرونه وُو همي تاسي يِئِ
۵۲ ۵۲ کوم يو له نبيانو ستاسي پلرونو ونه ربړاوه او هغوي مو وژلل چه
پيش‌خبريِ ئي کوله له راتلو دَ هغه صادقه چه دَ هغه تاسي اوس سپارونکي
۵۳ او قتلونکي شولي ۵۳ تاسو چه په ترتيب دَ فرښتو توريت بيامومند او
ومو نه ساته

۵۴ چه دا ئي واوريدل په خپلو زړونو غوڅ شول او غابنونه ئي ورته وچيچل ۵۴
۵۵ ليکن دي له رُوحُ اُلقُدُسَّ ډک آسمان ته ئي کتل اوجلال دَ الله ئي وليد ۵۵
او يسوع په ښي لاس دَ الله ولاړ ۵۶ و ئي ويل گوريِ زه آسمان پرانتلي او ۵۶
ابنِ آدم به ښي لاس دَ الله ولاړ وينم ۵۷ او هغوي په لوي آواز ناري وکړي ۵۷
اوخپل غوږونه ئي بند کړل او په يوه زړه ئي هجوم پرِ راوړ ۵۸ او له ښهرَ ۵۸
ئي بهر وويوست سنګسار ئي کړ او شاهدانو خپلي جامي دَ يو ځوان ښپو
ته چه ساؤل ورته وابه شه کيښوذلي ۵۹ او هغه اِسْتيفان ئي سنګسار ۵۹
کاوه چه دُعا ئي کوله او ويل ئي چه اي يسوع خداونده ځما روح قبول کړه
نو زنګنونه ئي ووهل په لوي آواز ئي ناره وکړه چه اي خداونده دا ګناه
په دوي مه ږده اوچه دا ئي ووِ نو اوده شه ✤

# اتم باب

۱ او ساؤل دَ هغه په قتل راضي وه ۱
او په دغه ورځ سخت ربړ په هغه کليسيا چه په اورشليم کښ وه
پيښ شه تر هسي حده چه ټول بي له رسولانو په اطرافو دَ يهُوديا او دَ
سامِريي کښ خواره واره شول ۲ او صالحانو سړو اِسْتِيفان ښخ کړ او په ده ئي ۲
لوي وير وکړ ۳ او ساؤل کليسيه تباه کوله او کور په کور به ننه وت ۳
سړي او ښځي به ئي راکښل او بنديخاني ته ئي سپارل
۴ پس هغوي چه خواره شول هر ځاي ته چه به ورتلل دَ کلام ۴
زيري کونکِي وُو ۵ او فيلبُس دَ سامِري ښهر ته ورکوز شه هغو ته ئي ۵
دَ مسيح وعظ کاوه ۶ او ټولبو په يو زړه دَ فيلبُس خبري اوريدلي هرکله ۶
چه هغه نخښي او عجائبات چه ده کول هغوي واوريدل او وليدل ۷ ځکه ۷
چه له ډيرو نه چه پَليت رُوحُونه ئي لرل په لوي آواز ناري وهونکِي ووتل
او ډير شلانو او ګوډانو شِفا موندله ۸ او په هغه ښهر کښ لويه خوشحالي ۸
وشوه
۹ ليکن يو سَيمُون نومي سړي وړاندِ په هغه ښهر کښ وه چه ۹

جادوگرِي ئي کوله او دَ سامِرِي خلق ئي حيرانول او ځان ته ئي لوئَ سړي وايه
۱۰ ۱۰ او ټولو له وړوکو تر لويو پورې ئي تابعدارِي کوله ويل ئي چه دا هغه قدرت
۱۱ دَ الله دي چه اکبر ورته وائي ۱۱ او دَده تابعدارِي ئي کوله په دي سبب چه
۱۲ له ډيري مُدي نه ئي په خپلي جادوگرئ حيران کړي وُو ۱۲ ليکن هر کله چه دَ
فيلبُس په زيري ئي ايمان راوړ چه ده دَ الله په بادشاهئ او په نوم دَ
۱۳ يسوع مسيح ئي زيري کاوه نو سړيو او ښځو بپتسما بياموندهِ ۱۳ او سيمُون
په خپله هم ايمان راوړ اوچه بپتسما ئي بياموندهِ نو مدام فيلبُس سره
وه اوچه هغه ښځني او لوي توَتونه ئي وليدل چه وشول نو حيران شه
۱۴ ۱۴ او هر کله چه هغو رسولانو چه په اورشليم کښ وُو واوريدل
چه سامِريانو کلام دَ الله قبول کړ نو پَطرُس او يُوحنّا ئي ور واستول -
۱۵ ۱۵ او چه هغوي ورکوز شول نو دَ دوي دَپاره ئي دُعا وکړه تاچه رُوحُ القُدُس
۱۶ بيامومِي ۱۶ ځکه چه لا تراوسَ په هيڅ يَوه له هغو نه نازل شوي نه وه
۱۷ بي له دي چه هغوي په نامه دَ خداوند يسوع بپتسما موندوڼکي وُو ۱۷ هغه
وقت چه دوي لاسُونه په هغو کيښودل نو هغوي رُوحُ القُدُس بياموند -
۱۸ ۱۸ ليکن چه سَيمون وليدل چه په کيښودلو دَ لاسُونو دَ رسولانو رُوحُ القُدُس
۱۹ ورکيږي نو رُوپئ دوي ته وړاندِ راوړي ۱۹ و ئي ويل چه ما ته هم دا قُدرَت
۲۰ راکړئ چه په هرچا چه لاسُونه کيږدم رُوحُ القُدُس بيامومِي ۲۰ پَطرُس ورته
وويل چه ستا سپين زرد له تا سره هلاک شِي ځکه چه تا ګمان وکړ چه بخښنه
۲۱ دَ الله په رُوپو حاصليږي ۲۱ تا لره په دي کار کښ حِصّه او برخه نشته
۲۲ ځکه چه ستا زړه دَ الله دَ وړاندِ راست نه دي ۲۲ نو له دي شرارتَ خپلَ
توبه کړه او خداوند ته درخواست وکړه کوندِ دا خيال دَ زړه دِ وبخښلي شِي
۲۳ ۲۴ ۲۳ ځکه چه زه دِ په تلخئ دَ صفرا او په قيد دَ ظلم کښ وينم ۲۴ نو سَيمُون
ځواب ورکړ و ئي ويل چه تاسي ځما دَپارَ خداوند ته درخواست وکړئِ تاچه له هغه
څه نه چه تاسي ويلي دِي په ما را نه شِي
۲۵ ۲۵ بيا دوي پس له هغه چه شاهدِي ئي ورکړه او په کلام دَ خداوند

ني خبري وکړي اورشـليم ته وچاروتل او په ډېرو کليو دَ سامريانو کښ
ني زيري ورکړ
٢٦ ٢٦ بيا فرښتي دَ خداوند له فيلبُس سره خبري وکړي و ني وبل چه
پورته شه او دَ سُهيل په طرف په هغې لاري چه له اورشليم نه غزه
٢٧ نه ځي چه بيابان دي لار شه ٢٧ نو هغه پاڅيده روان شه چه يو حبشي
سړي خواجه وزيرا دَ کُنداکه ملکي دَ حبشو چه په ټولو خزانو دَ هغې مختار وه
٢٨ اورشليم ته دَ عبادت دَ پاره راغلي وه ٢٨ او په جاروتلو کښ په خپل کاډي ناست
٢٩ صحيفه دَ اَشعياه نبي ني لوستله ٢٩ نو رُوح فيلبُس ته وويل لار شه او له
٣٠ دغي کاډي سره يو ځاي شه ٣٠ نو فيلبُس وردوکه واني وريدل چه اَشعيا
٣١ نَبي ئي لوستله ده ورته ووِ چه کمزه په دغه پوهيږي چه ني لولي ٣١ وئي ويل
چه څرنګ توانيږم بي له دي چه څوک ئي راوښيي او فيلبُس نه ني سوال وکه
٣٢ چه ور وخيژي او ورسره کښيني ٣٢ او هغه باب دَ کتاب چه ني لوست
دا وه

دَ ګډي په شان چه مذبح ته ني بيايي
او لکه وري دَ خپل سکښتونکي دَ وړاند بي ږبي وي
هم هسي خپله خوله نه پرانزي
٣٣ ٣٣ دَ ده په حليميِ کښ انصاف تر پوري شه
او دَ ده پيړي به څوک بياني کړي
ځکه چه ژوندون دَ ده له زمکي آخستي شي

٣٤ ٣٤ نو هغه خواجه فيلبُس ته په ځواب کښ وويل چه زه له تا نه
٣٥ سوال کوم چه نبي دغه دَ چا په حق کښ وائي دَ خپل ځان يا له بل ٣٥ نو
فيلبُس خپله خوله پرانستله او له دي نوشتي ني شروع وکړه او په يسوع ئي ورته
٣٦ زيري ورکړ ٣٦ او چه دوي په لار تلونکي وه نو په اوبو راغلل نو خواجه ووِ
٣٧ ګوره اوبه له بپتسما موندلو نه مِرخه منع کوي (٣٧ فيلبُس ووِ هرکله چه که
ته په ټول زړه سره ايمان راوړي نو روا دي په ځواب کښ ني وويل ايمان مِ

۳۸ راورِ چه يسوع مسيح زوي دَ الله دَي) ۳۸ نو حکم ئي وکړ چه ګاډي دِ
ودروِي نو دواړه اوبو ته کوز شول فَيلبُس او خواجه نو هغه ته ئي بپتسما
۳۹ ورکړه ۳۹ او چه له اوبو را وختل رُوح دَ خداوند فَيلبُس وړيو او خواجه
۴۰ بيا ونه ليد ځکه چه په خوښئِ سره په لاري ته ۴۰ او فَيلبُس په اَشدُود کښ
وموندلي شه او په ټولو ښهرونو کښ ګرزيده زيري ئي ورکاوه ترهغه چه
قَيصَرِيي ته راغي ٭

# نهم باب

۱ ۱ ليکن ساؤل لا په ويرولو او په قتل دَ شاګردانو دَ خداوند دم واهه سردار
۲ کوهِن ته ورغي ۲ او له هغه ئي خطونه وغوښتل په طرف دَ هغو عبادتخانو
چه په دَمِشق کښ وي دي دَپارَ چه که څوک دَدي طريقي سړي ومړي که
۳ سړي وِي که ښځه تړلي ئي اورشليم ته راولِي ۳ او په تلو کښ داسي وشول
چه دي دَمِشق ته نژدي شه نو ناڅاپه يَو نوُر له آسمانه دَده نه چاپيره
۴ وځليده ۴ نو دي په زمکه پريوت او يَو آواز ئي واوريده چه ورته ئي ويل
۵ اي ساؤلَ ساؤلَ ځله مِ ربړوي ۵ ده وويل اي خداونده ته څوک يئُ او ده
وويل زه هغه يسوع يم چه ته ئي ربړوي مګر پورته شه ښهر ته لاړ شه
۷ چه هلته به تا ته وويلي شِي چه تا ته څه کول بايده دِي ۷ او هغه سړِي
چه ورسره هم سفرِي وُو چپ ولاړ وُو آواز ئي اوريده مګر هيڅوک ئي نه
۸ ليدل ۸ نو ساؤل له زمکي نه پاځيده چه خپلي ستړګي ئي پرانستلي هيڅوک
۹ ئي ونه ليدل او هغوي ئي لاس وِنيو دَمِشق ته ئي ننه يوست ۹ او دري ورځي
ئي نه ليدل او هيڅ ئي نه خوړل نه څښل
۱۰ ۱۰ او په دَمِشق کښ حَنَّانِيا نومي يَو شاګرد وه چه خداوند په رويا کښ
۱۱ وُرته ووِ اي حَنَّانِيا ده عرض وکړ ګوره دا يم اي خداونده ۱۱ خداوند
ورته وويل پورته شه او هغي کوڅي ته چه سَمَّه نوُم ئي دي لاړ شه او په
۱۲ کور دَ يهودا کښ ساؤل نوُمي طَرَسُوسِي ولټوه ځکه ګوره هغه دعا کوِي ۱۲ او
ده يَو حَنَّانِيا نومي سړي راننه وتونکَي ليدلي دَي او په ده لاسونه کيږدِي تا

۱۳ چه بِینا شِي ۱۳ حَنانِیا ځواب ورکړ چه اي خداونده له ډیروم دَدې سړي په
باب اوریدلي دِي چه په اورشلیم کښې ستا په مُقَدَّسانو څومره بدي ئې
۱۴ کړي دِي ۱۴ او دلته هم له سردار کوهینانو قُدرت لري چه هغه ټول چه
۱۵ ستا نُوم اَخلِي بند ئې کړِيَ ۱۵ خداوند ورته وویل لاړ شه چه داځما غوره
کړي لوښي دي تاچه نُوم ځما په وړاندِ دَ قَومُونو او دَ بادشاهانو او دَ بنِي اسرائیلو
۱۶ پوسي ۱۶ ځکه چه زه به ئې ورښکاره کړم چه څومره زحمتونه ځما دَ نُوم دَپارَ
۱۷ زغمل بایده دِي ۱۷ نو حَنّانِیا لاړ او کور ته ننه وت او په هغه ئې لاسُونه کیښول
و ئې ویل چه اي ساؤلَ وروَرَ هغه خداوند یسوع چه ستا دَ راتلو په لاري
درته ظاهر شه راواستولم تاچه بِینا شي او له رُوحَ اَلقُدُسَ ډک شِي
۱۸ ۱۸ او دستِي ئې له سترګو نه په شان دَ پوست پریووت بِینا شه اوپورته شه
۱۹ بپتسما ئې واخسته ۱۹ او ډوډيُ وخوړه اوقوّت ئې بیاموند
۲۰ او څو ورځي په دَمِشق کښې له شاګردانو سره پاتي شه ۲۰ او دستِي
۲۱ ئې په جماعتونو کښې دَ یسوع وعظ کاوه چه هغه زوي دَ الله دَي ۲۱ او
ټول اوریدونکي حیران شوِي ویل ئې چه کنرِه دا هغه څوک نه دي چه په
اورشلیم کښې ئې هغه کسان هلاکول چه دا نُوم به ئې اخسته اودلته دي
۲۲ دَپارَ راغلي وه چه هغوي سردار کوهینانو ته بند کړِي واستوِي ۲۲ لیکن ساؤل
زیات قُوّت بیاموند هغه یَهودیان چه په دَمِشق کښې اوسیدونکي وُو
حیران ئې کړل او ثابت ئې کړ چه دا هغه مسیح دي
۲۳ ۲۳ اوچه ډیري ورځي پوره شوي یهودیانو جرګه وکړه چه و ئې وژنِي
۲۴ ۲۴ لیکن ساؤل ته مکر دَدوي معلوم شه او شپه او ورځ ئې هم دَ دروازو
۲۵ څوکئ کوله تاچه و ئې وژنِي ۲۵ مګر په شپه کښې شاګردانو واخست په ټوکرئ کښې
کښېسته له دیوالَ ئې کوز کړ
۲۶ ۲۶ اوچه ساؤل اورشلیم ته راغي کوشش ئې وکړ چه له شاګردانو
سره یَوځاي شِي لیکن ټول تري نه ویریدل ځکه چه باور ئې نه کاوه چه هغه
۲۷ شاګرد دي ۲۷ لیکن بَرنَاباس واخست او رسولانو ته ئې بوتَ او هغوي ته ئې خبره وکړه

چه څرنګ خداوند ئې په لارِي وليد او چه له ده سره ئې خبري وکړي او
څرنګ ئې په دمِشق کښ په نُوم دَ يسوع په زړورتوب سره وعظ کاوه -
۲۸ ۲۸ او په اورشليم کښ ئې له هغو سره تله راتله کول او په نُوم دَ خداوند
۲۹ ئې په زړورتوب وعظ کاوه ۲۹ او له يُونانِي يَهُودِيانو سره ئې خبري او بحث
۳۰ کاوه ليکن هغوي دَ ده دَ قتل په کوشش کښ شول ۳۰ نو چه ورونړو خبر
شول نو ئې قيصريي ته بوته او طَرطُوس ته ئې واستاوه
۳۱ ۳۱ هغه وقت کليسيا په ټوله يَهُوديه او جَلِيل او سامِريه کښ
آرام بيامونډ او آباده کيدله او دَ خداوند په خوف کښ او په تسلّيِ دَ
رُوحُ الْقُدُس کښ ګرزيدل او زياتيدل
۳۲ ۳۲ او داسي وشول چه پَطرَس په ټولو اطرافو کښ ګرزيده نو مُقَدسو
۳۳ اوسيدونکو دَ لُدّي ته هم ورکوز شه ۳۳ او هلته ئې يَو سړي بيامونډ چه
۳۴ نُوم ئې اِينِياس وه چه له اَتو کالو نه په کټ پروت وه چه شل وه ۳۴ نو پَطرَس
ورته وويل اي اِينِياس يسوع مسيح تا ته شِفا درکوِي پاڅه او بستره
۳۵ خپله وغوړوه په هغه ساعت پاڅيده ۳۵ او ټول اوسيدونکي دَ لُدّي
او دَ سارُون هغه وليد او دَ خداوند په لوري وګرزيدل
۳۶ ۳۶ او په يافا کښ يَوه شاګرده وَه طَابِيتَا نُومي چه معنیٰ ئې هُوسئِ ده او دا له
۳۷ نيکو عملونو او له خَيراتُونو چه ئې کول ډکه وَه ۳۶ او داسي وشول چه په هغو ورځو
کښِ رنځوره شوه او مړه شوه او غسل ئې ورکه او په بالاخاني کښ ئې کيښوده -
۳۸ ۳۸ او چه لُدّه يافي ته نزدي وه هغو شاګردانو چه واوريدل چه پَطرَس
هلته کښ دي دوه تنه ئې ور واستول سوال ئې ورته وکړ چه مونږ تخه په راتلو کښ
۳۹ ډيل ونه کړي ۳۹ او پَطرَس پاڅيده او له هغو سره راغي او چه ورسيده نو دي ئې هغي
بالاخاني ته وخيژاوه او ټولي کونډي ژړيدونکي ولاړي وي او ښکاره کونکي
دَ هغي قَميصُونو او جامو چه هُوسئِ هغه وقت چه له دوي سره وَه ګنړلي
۴۰ وي ۴۰ ليکن پَطرَس ټولي بهر کړلي زنکنونه ئې ولګول او دُعا ئې وکړه او دَ
جُثّي په طرف وګرزيده وئې ويل اي طَابِيتَا پورته شه او سترګي ئې پرانتلي

۴۱ اوچه پَطرَسْ ئي وليد نو کښيناستنه ۴۱ اولاس ئي ورکړ او پورته ئي کړه او
۴۲ مُقَدَّسان او کونډي ئي وبللي هغه ئي دوي ته ژوندئ وسپارله ۴۲ نو دا په
۴۳ ټوله يافه کښ مشهوره شوه او ډيرو په خداوند ايمان راوړ ۴۳ او داسي
وشوه چه په يافي کښ شمعون رنګريز څخه ډيري ورځي پاتي شه ❊

## لسم باب

۱ ۱ او په قيصريه کښ يو کرنيليوس نومي سړي صوبدار دَ هغه فوځ چه
۲ اِيطالِيا ورته وايِئ ۲ او هغه له ټول کورخپل سره ديندار او خداي ترسه
وُه چه ډير خيراتونه ئي خلقو ته ورکول او په هر وقت کښ ئي الله ته دُعا کوله
۳ ۳ هغه يوه ورځ په رؤيا کښ ظاهره نهم ساعت ته نزدي فرښته دَ الله وليده
۴ ورننه وتله او ورته وئي ويل اي کَرنيليُوسَ ۴ اوچه ورته په څير شه
او وويريده او وئي ويل څه دِي اي خداونده ده ورته وويل دُعا او
۵ خيراتونه ستا دَ يادګاريِ دَپارَ دَ الله دَ وړاندِ ختلي دِي ۵ او اوس يافي
۶ ته سړي واستاوه او شَمْعُون چه پَطْرَسْ ورته وايه شِي راوبوله ۶ چه
هغه دَ شَمْعُون نومي رنګريز ميلمه دي چه کورئي دَ درياب په غاړه دي
۷ ۷ او چه هغه فرښته چه ورسره ئي خبري کولي لاړه نو دوه تنه ئي له
خدمتګارانو خپلو او يَو ديندار سپاهي له هغو نه چه دَده دَ ملازمانو
نه وه وئي باله اوچه په هرڅه ئي پوره خبرکړل نو يافي ته ئي واستول
۹ ۹ بيا په صبا چه دوي سفر کاوه او ښهر ته نزدي شول نو پَطْرَسْ
۱۰ په کوټه وختوت دَ دُعاکولو دَپارَ شپږم ساعت ته نزدي ۱۰ نو وږي شه
وئي غوښتل چه څه وخوريِ او چه هغوي ده له تياري کاوه نو په ده
۱۱ بيخوديِ راغله ۱۱ نو آسمان ئي پرانتلي وليد او يَو لوښي لکه لوي څادر
۱۲ په څلورو طرفو تړلي او په زمکه ځوړند په ده راکوزيږي ۱۲ چه په هغه کښ
ټول چارپايان دَ زمکي او وحشيان او خوځيدونکي دَ زمکي او مرغان دَ
۱۳ هوا وُوُ ۱۳ او ورته آواز وشه چه اي پَطْرَسَ پورته شه ذبحه کړه اووخوره
۱۴ ۱۴ پَطْرَسْ ووِيل چه دا دِ ونه شِي اي خداونده ځکه چه ما هرګز حرام

۱۵ او ناپاک خوړلي نه دي ۱۵ بیا بل وار ورته آواز وشه هغه چه الله پاک کړي
۱۶ دِي ته ئي مه حرام کوه ۱۶ او دا دري واره وه بیا هغه لوښي هم آسمان ته
پورته کړي شه
۱۷ ۱۷ او چه پطرس په خپل زړه کښ حیران وه چه دا رویا چه ده
ولیده څه به وي کوره هغه سړي چه له کرنیلیوس استولي شوي وُو دَ شمعون
۱۸ دَ کور پوښتنه ئي کوله په دروازي کښ ودریدل ۱۸ او غږ ئي وکړ پوښتنه ئي
۱۹ کوله چه شمعون چه پطرس ورته وایه ښي دلته میلمه دي ۱۹ او چه پطرس
۲۰ په رویا کښ متفکر وه رُوح ورته ووِ کوره دري سړي دِ لټوي ۲۰ لیکن پورته
شه او کوز شه او له هغو سره لاړ شه او هیڅ شک مه راوړه ځکه چه دوي
۲۱ ما درواستول ۲۱ نو پطرس هغو سړو ته ورکوز شه وئي ویل کوره زه یم
هغه چه تاسي ئي لټويُ څه سبب دَي چه تاسي دَ هغه دَپاره راغلي يئ —
۲۲ ۲۲ هغوي وویل چه کرنیلیوس صوبدار چه صادق او خداي ترسه سړي دَي
او په نزد دَ ټول قوم دَ یهودیانو نیکنام دَي په واسطه دَ مقدّسي فرښتي ئي
۲۳ اِلهام بیاموند چه تا خپل کور ته وبولي او خبري له تا نه واوري ۲۳ نو ده
هغوي دننه وبلل او میلمستیا ئي ورکړه
بیا صبا پطرس ورسره ووت او ځوني له وروڼو دَ یافي ورسره ملکري
۲۴ شول ۲۴ او په صبا قیصریي ته ورننه وتل او کرنیلیوس دَ دوي انتظار کاوه
۲۵ او خپلوان او آشنایان خپل ئي وبلل ۲۵ او چه پطرس ورسیده کرنیلیوس
۲۶ ئي استقبال وکړ او په پښو ئي پریوت سجده ئي وکړه ۲۶ او پطرس هغه پورته
۲۷ کړ وئي ویل پاڅه زه هم انسان یم ۲۷ بیا ننه وتل او خبري ئي سره کولي
۲۸ او ډیر ټولي ئي جمع شوي بیاموندل ۲۸ نو ده هغو ته وویل چه تاسو خبر
يئ چه څرنګ یهودي سړي ته له بیګانه سړي سره پیوسته کیدل یا ورتلل
ناروا دي لیکن ما ته الله ښکاره کړل چه هیڅ انسان ته حرام یا ناپاک وَ
۲۹ نه وایم ۲۹ له دي سببه بي عذره چه تاسو وبللم راغلم اوس زه پوښتنه
۳۰ درنه کوم چه دَ څه خبري دَپاره مو زه وبللم ۳۰ نو کرنیلیوس وویل چه له

څلور ورځو نه تر دي ساعتَ پورې زه په نهم ساعت کښ په خپل کور کښ دُعا
کوښې وم او گوره چه يَو سړي چه نوراني جامې يې لرلې په مخ کښ م ودريده
٣١ او وئې ويل اې کرنيليُوسَ ستا دُعا واوريدله شوه او ستا خيراتونه دَ الله ٣١
دَ وړاندِ يادکړې شول ٣٢ نو يافى ته واستوه او شَمعُون چه پطرُس ورته وايه ٣٢
شي راوغواړه چه دَ شَمعُون رنگريز کره په غاړه دَ درياب ميلمه دَي ٣٣ نو ٣٣
دستي مِ در واستول او تا ښه وکړه چه راغلې او اوس مونږ ټول دَ الله په
حِضُور حاضر يُو تا چه هغه ټول چه خداوندتا ته فرمايلي دِي واورُو ٣٤ نو پطرُس ٣٤
خوله پرانستله وئې ويل
چه په حقه سره پوه شوم چه الله دَ مخونو قبلونکَي نه دَي ٣٥ بلکه په ٣٥
هر قوم کښ هغه دَده خوښ دِي چه له ده نه ويريږي او صادقان دِي ٣٦ هغه ٣٦
کلام چه بني اسرائيل ته ئې واستاوه زيري په سلامتيا ورکوي په يسوع مسيح
(هم هغه دَ ټولو خداوند دي) ٣٧ تاسو په هغي خبري خبر يئِ چه شروع ئې له ٣٧
جليلَ وَه په ټوله يهوديه کښ خوره شوه پس له هغي بپتسما چه يُوحَنّا ندا
پرِ کوله ٣٨ يسوع ناصرِي چه څرنګ الله په رُوحَ الْقُدُس او په قدرت سره مسحه ٣٨
کړ چه دي احسان کونکي تيريده او هغو ټولو ته چه اِبلِيس پرِ مسلّط وه شفا
ورکړِي څکه چه الله له ده سره وه ٣٩ او مونږ شاهدان يُو دَده په ټولو کارونو ٣٩
چه دَ دَ يهوديئ په ملک کښ او په اورشليم کښ وکړل هغه چه قتل ئې هم
کړ په لرگي ئې ځوړند کړ ٤٠ هغه الله په دريمه ورځ پورته کړ ظاهرکيدل ئې ٤٠
ورکړل ٤١ ليکن نه ټولو خلقو ته بلکه په هغو شاهدانو چه الله وړاندِ غوره ٤١
کړي وُو مونږ ته چه پس له پورته کيدلو دَده له مړيو نه مونږ ورسره وخوړل
او وڅښل ٤٢ او مونږ ته ئې حکم وکړ چه خلقو ته وعظ او شاهدي دکړو ٤٢
چه دا دي له الله نه مقرّر کړي شوي قاضي دَ ژوندو او دَ مړو ٤٣ او ټول ٤٣
نبيان په ده شاهدِي ورکوي چه هغه ټول چه په ده ايمان راوړي دَده په
نُوم به بخښنه دَ خطاوَ بيامومِي
٤٤ لا تر اوسه پطرُس دا خبري کولي چه رُوحُ الْقُدُس په هغو ټولو چه ٤٤

٤٥ كلام ئي اوريده نازل شه ٤٥ او هغه ټول مؤمنان له مختونانو نه چه له پطرس
سره راغلي ؤو حيران شول په دي چه بخشش دَ رُوحُ الْقُدُس په غير قومونو
٤٦ هم نوي شه ٤٦ ځکه چه دوي بيلي ژبي ويونکي اوريدل دَ الله تمجيد ئي کاوه
٤٧ ٤٧ نو پطرس ووِ چه څوک توانيږي چه اوبه منع کړي چه بپتسما ورنه کړي
٤٨ شي هغو ته چه رُوحُ الْقُدُس ئي ځموږ په شان بياموند ٤٨ نو وئي فرمائل
چه دوی دِ په نوم دَ يسوع مسيح بپتسما کړي شي هغه وقت ئي ده ته
سوال وکړ چه څو ورځي هلته پاتي شي +

## يولسم باب

١ ١ نو رسولان او ورونړه چه په يهوديه کښ ؤو وائي وريدل چه غير قومونو
٢ هم کلام دَ الله قبول کړ ٢ اوچه پطرس اورشليم ته وختو اهلِ سُنتو ورسره
٣ جګړه وکړه ٣ وئي ويل چه ته نامختونو سړو ته ورننه وتي له هغو سره دِ وخوړل
٤ ٥ ٤ او پطرس له اوّل نه په تفصيل سره هغوي ته بيان وکړ وئي ويل ٥ چه
زه دَ يافي په ښهر کښ وم دُعا مِ کوله چه په بيخودي کښ مِ يوه رُويا وليدله
چه يو لوښي نازليدونکي دَ لوي څادر په شان په څلورو پلوونو له آسمانه
٦ څوړند شوي چه ما ته هم راغي ٦ نو په غور سره ورته په څير شوم او وم
٧ کتل چارپايان دَ زمکي او وحشيان او خوځيدونکي او مرغان دَ هوا ٧ او
يو آواز مِ واوريده چه راته وائي اي پطرس پاڅه ذبحه کړه و ئي خوره -
٨ ٨ وم ويل هيڅري نه اي خداونده ځکه چه حرام يا ناپاک مِ په خولي کښ نه دي
٩ ننه وتلي ٩ مګر دويم وار آواز له آسمانَ وشه چه هغه څه چه الله پاک
١٠ کړي دي ته ئي مه ناپاک کوه ١٠ دا دري واره وشول بيا دَ آسمان په لوري
١١ پورته راکښلي شه ١١ او کوره فی الحال دري سړي دَ هغي کور دَ ورانِدِ ولاړ ؤو چه موږ په کښ ؤو
١٢ له قيصريي نه ما ته راواستولي شول ١٢ او رُوح راته وويل چه بي وسواسه
له هغو سره لاړ شه او دغه شپږ ورونړه هم راسره راغلل او دَ هغه سړي
١٣ کور ته ننه وتلو ١٣ او موږ ئي خبر کړو چه څرنګ ئي فرښته په کور خپل کښ
ولاړه ويونکي وليدله يافي ته واستوه او شَمعُون چه پطرس ورته وايه شي

۱۴ راوبوله ۱۴ او هغه به له تاسره هسي خبري وكړي چه ته او ستا ټول كور به
۱۵ پرِ بخات وموميِ ۱۵ او چه په خبرو كولو مِ شروع وكړه رُوحُ الْقُدُسُ په هغو
۱۶ نازل شه لكه چه وړنبي په مونږ هم ۱۶ نو ما كلام دَ خداوند را په ياد كړچه
څرنګ ويل ئي يُوحَنَّا په اوبو بپتسما وركوله مګر تاسي به په رُوحُ الْقُدُسُ بپتسما
۱۷ بياموئِ ۱۷ نوچه الله هغه بخشش هغوي ته وركړه لكه چه مونږ ته هم
چه په يسوع مسيح خداوند مو ايمان راوړ نو زه څوک وم چه دَ الله په
۱۸ منع كولو قادر شوي وي ۱۸ نوچه هغو دا واوريدل چپ شول او تمجيد دَ
الله ئي وكړ وئي ويل چه نو الله غير قومونو ته هم توبه دَ ژوندانه دَپارَ
بخښلي ده
۱۹ ۱۹ او په دي سبب هغوي چه خواره شوي وُو دَ هغه زوره چه په
اِستيفان پورته شوي وه تَرفِينِيقِيا او قِپْرُس او اَنطاكيه ته تيريدل او
۲۰ بي له يهوديانو ئي هيچا ته په كلام خبري ونه كړي ۲۰ ليكن څيني له هغو
نه چه قِپْرُوسيان او قيروانيان سړي وُو چه اَنطاكيي ته ورسيدل له يونانيانو
۲۱ سره ئي هم خبري وكړي او په خداوند يسوع ئي زيري كاوه ۲۱ او لاس دَ
خداوند له هغو سره وه او په شمار ډيرو ايمان راوړ دَ خداوند په
۲۲ لورِي وګرزيدل ۲۲ او خبر دَ دوي دَ هغه كليسيا په غوږو چه په اورشليم
۲۳ كښ وه ورسيده نو بَرنَاباس ئي اَنطاكيي ته واستاوه ۲۳ او چه هغه ورغي
او فضل دَ الله ئي وليد نو خوشحال شه او ټولو ته ئي نصيحت كاوه چه په
۲۴ ارادي دَ زړه دِ په خداوند كښ ټينګ شي ۲۴ ځكه چه دي نيک سړي او
له رُوحُ الْقُدُسُ او له ايمانَ ډک وه نو ډير ټولي خداوند ته وصل شول-
۲۵ ۲۵ او طَرطُوس ته بهر ووت تاچه ساؤل ولټوي او چه وئ موند اَنطاكيي
۲۶ ته ئي بوت ۲۶ نو داسي وشول چه هغوي پوره يو كال په كليسيا كښ جمع
كيدل او لوي ټولي ته ئي تعليم وركاوه او شاګردان وړنبي په كرستيان
په انطاكيه كښ وبللي شول
۲۷ ۲۷ او په دغو ورځو كښ څو نبيان له اورشليم نه انطاكيي ته راغلل

۲۸ ۲۸ او يَو له هغونه اَغابُوس نومي پاڅيده او په رُوح ئي اشارت وکړ چه سخت
قحط به په ټوله دنيا راشِي هغه چه دَ کلَوُدِيُوس په ورځو کښ هم وشه
۲۹ ۲۹ او شاګردانو نيت وکړ چه هريَو په خپل وَس سره څه شيز په خدمت
۳۰ دَ هغو ورونړو چه په يهوديَه کښ وُو واستوِي ۳۰ او داسي ئي هم وکړل
او په لاس دَ بَرنَاباس او دَ ساؤل ئي بـزرګانو ته واستول +

## دولسم باب

۱ ۱ او په هغو ورځو کښ هيروديس بادشاه لاسونه اوږده کړل تا چه له
۲ کليسيي نه ځنِ سرِي وآزاروِي ۲ او يعقوب ورور دَ يُوحنّا ئي په تُوره مړ
۳ کړ ۳ اوچه وئي ليدل چه په دغه دَ يهوديانو رضا ده زياتي ئي وکړ چه
۴ پطرَسْ هم ونيسِي او دَ فطيرو ورځي وي ۴ اوچه دي ئي ونيو نو په زندان
کښ ئي واچاوه او په څلورو ټولو دَ څلورو څلورو سپاهيانو ئي وسپاره
چه دَ ده ساتنه وکړِي او اراده کونکي وه چه پس له فصح نه ئي خلقوته راوباسي
۵ ۵ نو پطرَسْ په بنديخاني کښ ساتلي شوي وه او کليسيا دَده دَپارَ دَالله په
۶ درګاه کښ په زارئِ دُعا کوله ۶ او په هغه شپه چه هيروديس دَده دَ راېستلو
اراده لرله په هغه شپه پطرس په دوو زنځيرونو تړلي دَ دوو سپاهيانو په
۷ مينځ کښ اوده وه او څوکيدارانو دَ بنديخاني ورځه څوکئِ کوله ۷ اوګوره چه
فرښته دَ خداوند ورته ودريدله او په هغه کوټنړئِ کښ رڼا وځليده نو دَ
پطرَسْ اړخ ئي وواهه ويښ ئي کړ وئي ويل چه زر پاڅه او په هغه ساعت
۸ ئي زنځيرونه له لاسونو ولويدل ۸ او فرښتي ورته وويل چه خپله ملا وتړه
او څپلئِ په پښو کړه نو داسي ئي وکړل او ورته ئي وويل څادرخپل له ځانه
۹ چاپيره کړه او راپسي شه ۹ نو دي ووت او ورپسي شه او نه پوهيده چه هغه څه
چه له فرښتي وشول په حقيقت سره دي بلکه ده ګمان کاوه چه رُويا وينِي
۱۰ ۱۰ نو له اولي او له دويمي څوکئِ راتير شول دَ اوسپني دروازي ته چه دَ ښهر په
لورِي ځي راغلل نو هغه په خپله وَرته خلاصه شوه او له هغي نه بهر ووتل
۱۱ او دَ يوي کوځي نه تير شول او په هغه دم فرښته تِر بيله شوه ۱۱ اوچه پطرَسْ

په هوش شه وئي ويل چه اوس په تحقيق وپوهيدم چه خداوند خپله فرښته
را واستوله او زه ئي له لاسه دَ هيروديس او له ټوله انتظار دَ خلقو دَ
يهوديانو ئي خلاص کړم ۱۲ او چه دا فکر ئي وکړ کور دَ مريمي مور دَ يوحنا ۱۲
چه په مرقس وايه شه دي ورغي هلته ډير جمع شوي او دعا ئي کوله ۱۳ او ۱۳
چه پطرس دروازه دَ ډيوړي وټکوله نو يوه روده نومي جنئ اوريدلو ته راغله -
۱۴ چه آواز دَ پطرس ئي وپيژاند له خوښي ئي ور پرانه نت دننه وزغليده ۱۴
خبر ئي ورکړ چه پطرس ور مخه ولاړ دي ۱۵ دي ته ئي وويل چه ته ليونئ يي ۱۵
او چه دي تاکيد وکړ چه داسي ده نو هغوي وويل چه دَ هغه فرښته ده -
۱۶ ليکن پطرس لا ټکونکي وه نو چه هغوي ور پرانت دي ئي وليد حيران شول ۱۶
۱۷ ليکن ده په لاس ورته اشارت وکړ چه چپ شي او بيان ئي ورته وکړ ۱۷
چه خداوند دي څرنگ له بنديخاني نه ويوست وئي ويل چه يعقوب او
هغه ورونړه ئي په دي خبر کړئ بيا بهر ووت او بل ځاي ته لاړ ۱۸ او چه ۱۸
ورځ شوه دَ سپاهيانو په مينځ لوي شور ماشور پيښ شه چه پطرس
څه شه ۱۹ او هيروديس چه دي ولټاوه او بيا ئي نه موند له پهره دارانو ئي ۱۹
دريافت وکړ او حکم ئي وکړ چه قتل ته دِ ئي بوزي او په خپله ئي له يهوديه
نه قيصريي ته کوچ وکړ او هلته مقيم شه
۲۰ ليکن هيروديس په صوريانو او صيدونيانو قهرولي وه نو هغوي ۲۰
په يوه زړه ورته حاضر شول او بلاستس ناظر دَ خوابگاه دَ بادشاه ئي
راضي کړ التماس دَ صلحي ئي وکړ ځکه چه وطن دَ دوي له ملکه دَ بادشاه
گذاره موندله ۲۱ نو په مقرّره ورځ هيروديس بادشاهانه جامي واغوستلي ۲۱
او دَ عدالت په تخت کښيناست ورته ئي تقرير وکړ ۲۲ نو خلقو ناري وکړي چه دا آواز ۲۲
دَ الله دي نه دَ انسان ۲۳ او په هغه ساعت فرښتي دَ خداوند وواهه ځکه ۲۳
چه ده الله له تمجيد ورنه کړ او په چنجيو وخوړلي شه او مړ شه
۲۴ او کلام دَ الله لوئيده او زياتيده او برناباس او ساؤل له ۲۴
اورشليمَ وجاروتل چه دوي خپل خدمت پوره کړ او يوحنا چه مرقس

ورته وایه شِي له خان سره ئي واخست ✣

# دیارلسم باب

۱ ۱ او په کلیسیا کښ چه په اَنطاکیه کښ وه څو نبیان او اوستاذان وُو
بَرناباس او شَمعُون چه نِیجر ورته وایه شه او لوکیُوس دَ قِیروان او مَناین
۲ دَ تِي ورور دَ هیرودیس سردار دَ خلورمي او ساؤل ۲ اوچه دوي دَ خداوند
خدمت کاوه اوروژه ئي لرله رُوحُ اَلقُدُس وویل چه بَرناباس اوساؤل ځما دپارَ
۳ جدا کړئ دَ هغه کار دپارَ چه ما ورته رابللي دِي ۳ نو هَغوي روژه ونیوله
او دُعا ئي وکړه او لاسونه ئي پرِ کیښول او روان ئي کړل
۴ ۴ نو دغه چه له رُوحُ اَلقُدُس واستولي شول نو سَلوکیي ته کوز شول او
۵ له هغه ځایه قُبرُس ته لاهو شول ۵ اوچه په سَلَمِس کښ داخل شول نو
دَ یَهُودیانو په جماعتونو کښ ئي دَ اَللّٰه په کلام وعظ کاوه او یُوحَنّا له دوي
۶ سره خادم وه ۶ اوچه په ټوله جزیره کښ تر پافُوسَ پوري وګرزیدل نو یو یَهُودِي
۷ سړي بارِیَشُوع نومي جادوګر او دروغژن نبي ئي بیاموند ۷ چه له سَرجِیُّوس
پَولُس حاکم یو پوه سړي سره وه هم دغه بَرناباس او ساؤل ئي وبلل او التماس
۸ ئي ورته وکړ چه کلام دَ الله واوري ۸ مګر عَلِیمَس چه ترجمه دَ نُوم دَ ده جادوګر
ده له دوي ئي مخالفت وکړ او دا ئي وغوښتل چه حاکم له ایمانَ واړوي -
۹ ۹ لیکن ساؤل چه دي هم پَولُس وه له رُوحُ اَلقُدُسَ ډک او هغه ته په ځیر
۱۰ شه ۱۰ او وئي ویل چه اي له هر قِسمَ مکرَ او خباثته ډکه دَ اِبلیس زویه اي
دَ هري نیکئِ دښمنه ګنږه دَ اَللّٰه دَ سمو لارو له خرابولونه نه ودریږي څه ؟ -
۱۱ ۱۱ اوس ګوره لاس دَ خداوند په تا دي نو ته به روند شي او تر څو مدي پوري
به نمر ونه وینې نو به هغه ساعت دُهوند او تیاره پرِ پریوته نو ګیر
۱۲ چاپیره ګرزیده التماس کونکي چه څوک ئي له لاسَ نیولي بوزي ۱۲ نوچه حاکم
دا مقدمه ولیده تعلیم دَ خداوند ته حیران شه او ایمان ئي راوړ
۱۳ ۱۳ بیا پَولُس او هغوي چه ورسره وُو بیړئ ته وختل پَرجَه دَ پَمفُولِیي
۱۴ ته راغله او یُوحَنّا له دوي نه بیل شه اورشلیم ته وجاروت ۱۴ او دوي له

پرجَه نه تیر شول او اَنطاکیي دَ پِسِیدیي ته راغلل او دَ سَبّت په ورځ جماعت
١٥ ته ننه وتل کښیناستل ١٥ او پس له لوستلو دَ توریت او دَ صحیفو دَ انبیاؤ
دَ جماعت سردارانو ورواستاوه و ني ویل چه اي سړو وروڼوکه تاسو
١٦ څخه دَ وعظ کلام دَ خلقو دَپارَ وِي نو ووایئِ ١٦ نو پَولُس پورته شه
او په لاس ئي اشارت وکړ و ئي ویل
١٧ چه اي اسرائیلو سړو او اي له اَللهَ ویریدونکیو واورئِ ١٧ اَللهُ دَ دي
اُمّت دَ اسرائیل څمونږ پلرُوُنه غوره کړل او اُمّت ئي پورته کړ دَ مصر
دَ زمکي په مُسافري کښ او په اوچت بازو ئي له هغه ځاي نه راویستل
١٨ ١٩ ١٨ او تر مدي دَ څلویښتو کالو پوري ئي په بیابان کښ دَدوي زغم کاوه ١٩ او چه
اووه قومه ئي دَ کِنْعان په زمکه کښ هلاک کړل دَدوي زمکي ئي هغو ته
٢٠ په میراث وویشلي ٢٠ او پس له هغه نژدي دَ څلورو سوو پنځوسو کالو نه
٢١ تر صَمُوئیل نَبِي پوري ئي دوي ته قاضیان ورکړل ٢١ او پس له هغه ئي
بادشاه وغوښت او اَللهَ ساؤل زوي دَ قِیس له بِنیامین له خاندانه تر
٢٢ څلویښتو کالو پوري دوي ته ورکړ ٢٢ او چه هغه ئي لري کړ نو دوي ته ئي
داؤد بادشاه ودراوه او دَ هغه په حق کښ ئي شاهدي هم ورکړه و ئي ویل
چه داؤد زوی دَ یَسِّي لره مِ دَ خپل زړه په موافق سړي بیاموند هغه چه ټولي
٢٣ ارادي څما به پوره کړي ٢٣ او دَدهٔ له نسلَ موافق دَ وعدي الله دَ اسرائیل
٢٤ دَپارَ نجات دَهنده یسوع پورته کړ ٢٤ چه یُوحَنّا وړاند له راتلو دَده ټول
٢٥ اُمّت دَ اِسرائیل ته په بپتسما دَ توبي وعظ کاوه ٢٥ او چه یُوحَنّا خپل دور
پوره کړ نو و ئي ویل چه تاسي څه گمان کوئ چه زه څوک یم زه هغه نه یم
لیکن گوره پس له ما نه یو راځي چه زه لایق دَ هغه نه یم چه له پښو څپلئ
٢٦ ئي پرانزم ٢٦ اي سړو وروڼو او زامنو دَ آلِ ابراهام او هرڅوک چه په تاسي کښ
٢٧ له الله نه ویریږي مونږ ته کلام دَدي نجات را واستولي شه ٢٧ څکه چه
اوسیدونکو په اورشلیم کښ او سردارانو دَ هغو دي و نه پیژاند او خبري
دَ نبیانو چه په هر سَبّت لوستلي شي هغوی دَدهٔ په حکم کولو پوره کړل -

۲۸ ۲۸ او سره له دې چه يَو علّت ئې دَ مرګ په کښې بيا نه موند له پيلاطُس ئې
۲۹ وغوښت چه قتل دِ کړي شِي ۲۹ نو چه دوي ټول څيزونه چه دَ ده په حق کښې
ليکلِي شوِي وُو پوره کړل دي ئې له لرګي نه راښکته کړ او په قبَر کښې ئې
۳۰ ۳۱ کيښود ۳۰ ليکن اَللّه دي له مړو پاڅاوه ۳۱ او دَي ډيرِي ورځي په هغو ظاهر
شه چه له ده سره له جليلَ اورشليم ته ختلي وُو هغوي چه په نزد دَ اُمّت
۳۲ اوس دَده شاهدان دِي ۳۲ نو موږ تاسو ته زيرِي درکوُو په هغې وعدې چه
۳۳ څموږ له پلرونو سره وشوه ۳۳ داچه الله هغه څموږ څامنو سره پوره کړه
هر کله چه يسوع ئې پاڅاوه لکه چه په دويم مزمور کښې هم ليکلِي دِي چه ته څما
۳۴ زوي يې نن ورځ مِ وزيږولي ۳۴ او داچه دي ئې له مړو نه پاڅاوه تاچه بيا
هرګز سخاوالي ته ونه ګرزي داسي ئې وويل چه زه به تاسو ته دَ داؤد پاک او
۳۵ وفادار رحمتونه درکړم ۳۵ او دي دَپارَ په بل ځاي کښې هم وائي چه ته به خپل
۳۶ قدُّوس پرِي نږدي چه سخاوالي ووينې ۳۶ ځکه چه داوُد پس له هغه چه په
موافق په مصلحت دَ الله دَخپلي پيرِئ خدمتونه وکړل څملاست او له خپلو پلرونو
۳۷ سره کيښودلي شه او سخاوالي ئې وليد ۳۷ ليکن هغه څوک چه اَللّه پاڅاوه
۳۸ سخاوالي ئې ونه ليده ۳۸ نو اي سرو ورونړو تاسي ته دِ معلوم وِي چه دَهغه
۳۹ په واسطه تاسو ته په بخښني دَخطا منادي کيږي ۳۹ او دَده په واسطه چه
هرڅوک ايمان راوړي صادق کيږي له هر هغه څه چه په توريت دَ موسیٰ
۴۰ نَه توانيږي چه صادق وګرزلي شِي ۴۰ نو نظر کوئ هسي نه چه هغه څه چه
په نبيانو کښې ويلي شِي په تاسي راشي

۴۱ ۴۱ ګورئ اي سپک ګنړونکو او تعجّب وکړئ او هلاک شئ
چه زه به هغه عمل ستاسو په ورځو کښې وکړم
هغه عمل چه که څوک سو پرِي خبر کړي يقين به ونه کړئ

۴۲ ۴۲ اوچه دوي بهر ووتل نو هغوي سوال وکړ چه په راتلونکي سبّت
۴۳ کښې به په دا کلام بيا خبري ورسره وکړي شِي ۴۳ اوچه جماعت خور شه ډير
له يهُوديانو نه او دَ نويو عبادت کونکو نه په پولُس او په برناباس پسي شول

او دوي ورسره خبري كولي او نصيحت ئي ورته كاوه چه دَ الله په فضل كښ
ثابت اوسيږ
۴۴ او په دويم سبّت كښ قريب ټول ښهر جمع شه تاچه كلام دَ الله ۴۴
واوري ۴۵ نوچه يَهُوديانو ټولي وليدل نه غيرتَ ډک شول دَ پَولُس له خبرو ۴۵
نه برخلاف اوكفر ويونكي شول ۴۶ نو پَولُس او بَرنَاباس په زړورتوب سره ئي ۴۶
وويل واجب وُوچه په كلام دَ الله اوّل له تاسو سره خبري وكړي شي ليكن
چه تاسو هغه ردكوئ او خپل ځان دَ ابدي ژوندون حقدار نه شميرئ گورئ
مونږ غير قومونو ته گرزُو ۴۷ ځكه چه مونږ ته خداوند داسي حكم وكړ چه ۴۷

ته م دَ غير قومونو دَپارَ نوُر ودرولي
تا چه ته ترحدونو دَ زمكي پوري سبب دَ نجات شي

۴۸ نوچه غير قومونو دا واوريدل خوشحالي ئي كوله او دَ خداوند دَ كلام ۴۸
تمجيد ئي وكړ او هغوي چه ابدي ژوندانه ته مستعد شوي وُو ايمان ئي راوړ
۴۹ او كلام دَ الله په هغو ټولو اطرافو كښ خور شه ليكن يَهُوديانو ځو ۴۹
ديندارې او تقوىٰ داري ښځي او بزرگان دَ ښهر ولمسول او هغوي په پَولُس
او په بَرنَاباس آزار پورته هغوي ئي له خپلو حدودو نه بهر وويستل ۵۰ او ۵۰
دوي گرد دَ پښو خپلو په هغو وځنډه او اَيقُونيي ته راغلل ۵۱ او شاگردان ۵۱
له خوښئ او له رُوحُ اَلقُدُسَ ډک شول ❊

## څوارلسم باب

۱ او داسي وشول په اَيقُونيه كښ چه دوي جماعت دَ يَهُوديانو ته ننه وتل ۱
هسي خبري ئي وكړي چه لوي ټولي دَ يَهُوديانو او له يونانيانو ايمان راوړ-
۲ ليكن نامنونكيو يَهُوديانو زړونه دَ غير قومونو په ورونړو باندې ولمسول ۲
او بد ئي كړل ۳ په دي سبب ډيره مُده پاتي شول او په زړورتوب ئي خبري ۳
كولي په هغه خداوند چه په كلام دَ فضل دَ ده ئي شاهدي كوله او ور
ئي كړه چه نخښي او عجائبات دَ دوي په لاسونو جاري شول ۴ او ټولي دَ ښهر ۴
دوه ځايه شه ځيني له يَهُوديانو سره وُو او ځيني له رسولانو سره ۵ او چه ۵

دَ غیرِ قومونو او دَ یهودیانو له سردارانو خپلو سره حمله وشوه چه دوي
۶ دواړه سپک کړي او سنګسار ئي کړي ۶ دوي په دي پوه شول دَ لکاؤنیي
۷ ښهر دَ لسترې او دَ دربي کېر چاپېر هغو اطرافو ته وتښتېدل ۷ او هلته
ئي زېري ورکاوه
۸ ۸ او په لستره کښ یو سړي ناست وه چه پښې ئي بې طاقته وې او
۹ له کېدو دَ مورخېلې نه ګډ وه او هیچري ګرزېدلی نه وه ۹ هغه چه دَ پولُس
خبرې واورېدلې او هغه ورته ښه په ځیر شه او وئي لید چه ایمان دَ
۱۰ شفا موندلو لري ۱۰ نو په لوړ آواز ئي ورته وویل پاڅه په خپلو پښو سم
۱۱ ودرېږه هغه ټوپ کړ او وګرزېده ۱۱ نو چه ټولو هغه څه چه پولُس وکړل
وئي لیدل نو آواز خپل ئي دَ لیکاوني په ژبه پورته کړ و ئي ویل چه خدایان
۱۲ دَ انسان په شکل شوي مونږ ته راښکته شول ۱۲ او هغو برناباس ته دِیا
۱۳ وایه او پولُس ته هرمَس ځکه چه دوي په خبرو کښ مقدّم وُو ۱۳ نو کاهن
دَ دِیا دَ ښهر دَ وړاندِ غوایان او تاجونه دروازې ته راوړل او اراده ئي وکړه
۱۴ چه له ټولو سره ئي ذبحه کړي ۱۴ او چه هغو رسولانو برناباس او پولُس
دا واورېدل جامې خپلې ئي څیرې کړلې او ټولي ته ئي بهر ورټوپ کړ ناري ئي
۱۵ ووهلې ۱۵ و ئي ویل چه اي سړو دا څیرونه ولي کوئ مونږ هم ستاسې په
شان دردناک بشر یُو او تاسې ته زېري درکوو چه له دي باطلو څیزونو نه
واوړئ دَ ژوندي الله طرف ته هغه چه آسمان او زمکه او دریاب او هرڅه
۱۶ چه په هغه کښ دي پیدا ئي کړل ۱۶ چه په وړاندیو پیړو کښ ئي ټول امتونه
۱۷ پرېښول چه په خپلو لارو کښ وګرزي ۱۷ سره له دي خپل ځان ئي بې شاهدئ
پري نه ښود چه دي ښېګړي کولې تاسو ته ئي له آسمانَ باران درکړ او میوه
راوړونکي موسمونه او ستاسې زړونه ئي له خوراک ښه او له ښادئ نه ډک
۱۸ کړل ۱۸ او په دي خبرو ئي خلق له قربانئ کولو دَ هغو دَپارَ په سختئ سره
منع کړل
۱۹ ۱۹ لیکن یهودیان له اَنطاکیې او له اَیقونیې راغلل او ټولي ئي ولمسول

او چه پَولُس ئي سنګسار کړ نو له ښهره ئي باهر راکښِس او ګمان ئي کاوه
چه مړ دَي ٢٠ لیکن چه شاګردان ترِ چاپیره ودریدل نو پورته شه او ښهر ٢٠
ته ننه‌وت او په صبا له بَرناباس سره دَرْبي ته ووت ٢١ او چه په هغه ٢١
ښهر کښ ئي زیرِي ورکړِ او ډیر ئي شاګردان کړل بیا لَستْرَي او اَیقُونیي او
اَنْطاکیي ته وجاروتل ٢٢ او دَ شاګردانو زړونه ئي مضبوط کړل نصیحت ئي ٢٢
ورکاوه چه په ایمان کښ دِ ثابت وِي او چه په ډیرو مصیبتونو سره بایده دِي
چه په بادشاهيِ دَ الله کښ داخل شُو ٢٣ او چه په هرهِ کلیسیا کښ ئي دَ ٢٣
هغو دَپارَ بزرګان مقرّر کړل او دُعا ئي دَ روژي سره کوله هغوي ئي خداوند
ته چه ایمان ئي پرِ راوړي وه وسپارل ٢٤ او چه له پِسِیدیي نه تیر شول ٢٤
په پَمفُولِیه کښ راغله ٢٥ او چه په پرِجي کښ ئي په کلام وعظ کاوه نو ٢٥
اَتالِییّ ته ورښکته شول ٢٦ او له هغه ځاي نه اَنْطاکِیّ ته لاهو شول چه ٢٦
له دي ځایه فضل دَ الله ته سپارلي شوِي وُو دَ هغه کاردَپارَ چه پوره
کړي ئي وه ٢٧ او چه راغلل کلیسیا ئي راجمع کړه هغوي ئي خبر کړل په هغو ٢٧
ټولو څیزونو چه اَلله ورسرهِ کړي وُو او چه څرنګ ئي دروازه دَایمان دَ
غیر قومونو دَپارَ پرانتله ٢٨ نو هلته یوه مُدده چه لږ نه وه له شاګردانو ٢٨
سره تیر کړه +

# پنځلسم باب

١ او څو تنه له یَهُودیي نه راکوز شول وروڼو ته ئي تعلیم ورکاوه چه که ١
تاسي موافق په قاعده دَ مُوسیٰ سُنّت نه شيِ نو خلاصیدلي نه شيِ ٢ او چه ٢
دَ پَولُس او دَ بَرناباس ډیره جګړه او بحث له هغو سره وشه لنډه په دي
شوه چه پَولُس او بَرناباس او څو تنه نور له دوي نه دِ رسولانو او بزرګانو
ته دَدي مسئلي دَپارَ اورشلیم ته وخیژِي ٣ نو دوي له کلیسیا نه روان ٣
کړي شول له فِینِیقِیي او له سامِرِیي نه تیر شول په راګرزیدلو دَ غیر قومونو ئي
خبر ورکاوه او ټولو وروڼو ته ئي لویه خوشحالي ورکوله ٤ او چه اورشلیم ته ٤
ورسیدل نو دَ کلیسیا او دَ رسولانو او دَ بزرګانو قبول شول او هغوي ئي

٥ په هر هغه څه چه الله ورسره کړي وُو خبر کړل ٥ نو څِنِ سړي له فرقي دَ
فــريسيانو چه ايمان ئي راوړ پورته شول او وئي ويل چه بايده دِي چه هغوي
سُنَّت کړي شي او دَ مُوسیٰ دَ توريت په ساتلو حکم ورته وشي

٦ ٦ نو رسولان او بزرګان سره جمع شول چه په دي امر کښ نظر وکړي
٧ ٧ او چه ډيره مباحثه وشوه نو پَطرَس پورته شه ورته وئي ويل چه
اي سړو ورونړو تاسي پوهيږِئ چه له اولو ورځو نه الله له تاسو نه
زه غوره کړم تاچه غير قومونو ته څما له ژبي نه کلام دَ انجيل واوري او
٨ ايمان راوړي ٨ او اَلله دَ زړونو پيژندونکي دَي په هغو ئي شاهدِي ورکړه په دي
٩ چه رُوحُ اَلقُدُس ئي ورکړ لکه مونږ ته هم ٩ او څمونږ او دَ دوي په مينځ کښ
١٠ ئي هيڅ فرق ونه کړ چه په ايمان سره ئي دَ هغو زړونه پاک کړل ١٠ نو اوس
تاسي ولي اَلله ازمايئِ چه دَ شاګردانو په غاړه جغ ږدئِ چه نه څمونږ پلرونو
١١ او نه مونږ طاقت دَ وړلو دَ هغه لاره ١١ بلکه ايمان لرُو چه په فضل دَ
١٢ خداوند يسوع به خلاصون مُومُو په شان دَ هغوي ١٢ نو ټول جماعت
چپ شه
دَ پولُس او دَ بَرنَاباس ئي واوريدل په باب دَ هغو نښو او معجزو
١٣ چه اَلله په امتو کښ په واسطه دَ هغو ظاهره کړي دِي ١٣ او چه هغوي
چپ شول يَعقُوب څواب ورکړ و ئي ويل چه
١٤ اي سړو ورونړو څما واورئِ ١٤ شَمعُون بيان وکړ چه څرنګ اوّل اَلله
دَ غير قومونو بازخواست وکړ تاچه له هغو نه يَو اُمّت دَ خپل نُوم دَپارَ ونيسي
١٥ ١٦ ١٥ او دغه دَ نبيانو دَ خبرو سره موافق دِي لکه چه ليکلي دِي ١٦ چه

پس له دي به را وګرزم
او هغه پريوتلي خيمه دَ داؤد به بيا جوړي کړم
او خرابيَ به ئي جوړه کړم
او بيا به ئي ودروم

١٧ ١٧ دي دَپارَ چه باقي شوي دَ سړيو دَ خداوند طلب وکړي

او هغه ټول غیر قومونو چه په دوي زما نوم بللي شي.
۱۸ ۱۸ خداوند وايي چه دَ دي ټولو څیزونو معلوم کونکي دي له ابتدا دَ عالمه
۱۹ ۱۹ له دي سبب داسي ګنړم چه په هغو کسانو چه دَ غیر قومونو نه دَ الله
۲۰ په لوري راګرزیدنکي دي زحمت ورنه کړو ۲۰ مګر دا چه هغوي ته واستولي
شي چه دوي دِ له ګندګيُ دَ بُتانو نه او له زِنا نه او له مرئِ خپه کړي شوي
۲۱ او له وينو نه منع شي ۲۱ ځکه چه موسیٰ له وړاندينو پیړونه په هر ښهر
کښ هغوي لري چه په هغه وعظ کوي چه په هر سبَت کښ په
۲۲ جماعتونو کښ لوستي کیږي ۲۲ نو رسولانو او بزرګانو له ټولي کلیسیا سره
په دي اتفاق وکړ چه دوه تنه له مینځ خپله غوره کړيُ له پَولُس او بَرناباس
سره ئي انطاکيي ته واستويُ یعني یَهُودا چه بَرسَاباس ور ته وایه شه او
۲۳ سِیلاس چه په وروڼو کښ خاص سړي وُو ۲۳ او دَ هغو په لاس ئي داسي
ولیکل چه رسولان او بزرګان وروڼه هغو وروڼو ته چه له غیر قومونو نه
۲۴ په اَنطاکیه او سُوریه او کِلیکِیّه کښ دي سلامونه دِ وي ۲۴ له دي
جهته چه مونږ واوریدل چه ځیني خارج شوي ځمونږ له مینځ نه
تاسو ئي په خپلو خبرو پریشان کړي یيُ او ستاسي زړونه اړوي مونږ
۲۵ دوي ته هیڅ حکم کړي نه دي ۲۵ دي دَپارَ مونږ په یوَه زړه شوي
مصلحت مو ولید چه دوه سړي غوره کړو او تاسو ته ئي درواستوو
۲۶ ځمونږ دَ محبوبانو بَرناباس او پَولُس سره ۲۶ هسي سړي چه خپل ځانونه ئي ځمونږ
۲۷ دَ خداوند یسوع مسیح دَ پارَ وخندل ۲۷ نو مونږ یَهُودا او سِیلاس واستول
۲۸ او دوي به تاسي ته په شونډو په دي څیزونو کلام وکړي ۲۸ ځکه چه دا دَ
رُوحُ الْقُدُس او ځمونږ صلاح ده چه بل لوي بار په تاسي کي نه ږدُو بي له دي
۲۹ ضروري څیزونو ۲۹ چه له قربانيُ دَ بُتانو او له وينو او له مرئ خَپه شوي او له
زِنا نه منع وکړيُ نو که له دي مو ځانونه خپل وساتل نو ښه به وکړيُ
والسّلام
۳۰ ۳۰ نو چه دوي رخصت شول اَنطاکيي ته کوز راغلل او ټولي ئي جمع

۳۱ کړل او خط ئي ورکړ ۳۱ نوچه هغوي ولوست دَدي تسلي په سبب خوشحال
۳۲ شول ۳۲ او يهودا او سِيلاس چه دوي هم نبيان وُو وروڼړو ته ئي په ډيرو
۳۳ کلامونو نصيحت وکړ او قوي ئي کړل ۳۳ نوچه څو موده ئي هلته تيره کړه له
۳۴ وروڼړو نه په سلامتيا رخصت شول خپلو استونکو ته ۳۴ ليکن دَ سِيلاس
۳۵ خوښه شوه چه هلته پاتي شي ۳۵ ليکن پولُس او برناباس په اَنطاکيه کښ پاتي
شول له نورو ډيرو سره ئي تعليم او زيري په کلام دَ خداوند ورکاوه
۳۶ ۳۶ بياپس له څو ورځو پولُس برناباس ته ووييل وګرزو اودَ وروڼړو په
هر ښهر کښ چه مونږ په کلام دَ خداوند ورته منادي کړي ده وګورو چه
۳۷ څرنګ دي ۳۷ نو برناباس وغوښتل چه يوحنّا چه مرقس ورته وايه شه له
۳۸ ځان سره هم واخلي ۳۸ ليکن دَ پولُس خوښه نه شوه چه هغه سړي چه په
پمفليي کښ له دوي نه جدا شوي وه او له دوي سره په کار کښ لاړ نه شه
۳۹ له ځان سره بوزي ۳۹ نو دَ دوي په مينځ کښ جګړه وشوه تر دي حده پوري چه
يو له بله جدا شه او برناباس مرقس واخست قُبرُس ته په درياب کښ لاهو
۴۰ شول ۴۰ او پولُس سِيلاس غوره کړ او له وروڼړو نه په فضل دَ خداوند سپارلي
۴۱ شوي ووت ۴۱ او له سوريي او له قِيلِيقِيي نه تير شول کليسيا ئي مضبوطي کولي

## شپاړسم باب

۱ ۱ او دَربي او لَسترَي ته ورسيدل چه هلته يو تيموتاؤس نومي شاګرد وه زوي
۲ دَ يوي يهوديي مومني ښځي چه پلار ئي يوناني وه ۲ چه له وروڼړو نه چه په
۳ لسترَه او اِيقونيه کښ وُو شاهدي ورکړي شوي وه ۳ او چه پولُس وغوښت
چه هغه له ده سره بهر ووځي نو هغه ئي ونيو او سُنّت ئي کړ دَ هغو
يهوديانو دَپاره چه په دغو اطرافو کښ وُو ځکه چه هغو ټولو دَده پلار پيژانده
۴ چه يوناني وه ۴ او په هر ښهر کښ چه ګرزيدل هغه حکمونه چه رسولانو او بزرګانو
۵ په اورشليم کښ مقرر کړي وُو هغوي ته ئي وسپارل چه وئي ساتي ۵ نو
کليسا په ايمان کښ مضبوطه کيدله او هره ورځ په شمار کښ زياتيدله
۶ ۶ او چه له فريجيي او له وطنه دَ ګلاطيي نه تير شول نو روح القدس

منع کړل چه په اَسِیه کښې به کلام خبرې و نه کړي ٧ پس مِیسِیا ته راغلل ٧
کوشش ئې کاوه چه بِطَینیا ته لاړ شي لیکن رُوح دَ یسوع هغوی پرې نه ښودل
٨ او له مَسِیا نه تْرُواس ته ښکته شول ٩ یوه شپه پَولُس په خوب کښې ولیدل ٨ ٩
چه یو مَکدُونِي سړي ولاړ دې ده ته التماس کوي وائي چه مَکدُونیې ته را
پورې وزه او ځمونږ مدد وکړه ١٠ چه دا خوب ئې ولید بې درنګ مونږ وغوښتل ١٠
چه مَکدُونیې ته ووزو ځکه چه په یقین و پوهیدلو چه الله وبللو چه هغوی
ته زیرې ورکړو
١١ نو له تْرُواس نه په بیړۍ کښې روان په سم دَ وسره سَاموتراکې ته ١١
ورسیدلو او په صبا نیاپُولِیَس ته ورغلو ١٢ او له هغه ځای نه فِیلِپي ته ١٢
چه ورنبې ښهر له حدونو دَ مَکدُونیې او یو کَلُونیې دې او په هغه ښهر
کښې څو ورځې پاتې شولو ١٣ او دَ سَبَت په ورځ له ښهره ووتلو او په غاړې ١٣
دَ رود هغه ځای چه دَ دُعا ځای سوکانړه کښینا ستُو او له هغو ښځو سره
چه هلته جمعه وې خبرې مو وکړلې ١٤ او یوه ښځه لیدیه نومې ارغوان خرڅوونکې چه له ١٤
ښهر دَ تِیاتِیرې او خدای پرسته وه ځمونږ ئې اوریدل چه خداوند دَ دې زړه پرانت
چه خبرې دَ پَولُس واورِي ١٥ اوچه دې او خاندان ئې بپتسما واخسته التماس ١٥
ئې وکړ و ئې ویل چه که ستاسو یقین وِي چه په خداوندِم ایمان راوړ نو
ځما کور ته راشئ او پاتې شئ او په مونږ ئې زوروکړ
١٦ او داسې وشول چه مونږ دَ دُعا ځای له تللُو نو یوه وینځه چه غیب کوې ١٦
روح پرې باندِ وه او له غیب کوئ نه ئې ډیره ګټه خپلو مالکانو ته پیدا کوله
راسره مخامخ شوه ١٧ او دَ پَولُس او ځمونږ په وروستو راغلله ناري ئې کولې ١٧
ویل ئې چه دا سړي خادمان دَ اَللهُ تعالیٰ دِي چه مونږ ته دَ خلاصِي دَ لارې
خبر راکوِي ١٨ او دا کار ئې ډیرې ورځې کاوه لیکن پَولُس تنګ شه او متوجه ١٨
شه رُوح ته ئې ووېل زه تا ته حکم کوم چه په نُوم دَ یسوع مسیح له دې
نه ووزه نو په هغه ساعت ور نه ووت
١٩ نو چه مالکانو ولیدله چه امید دَ ګټې ئې لاړ شه نو پَولُس او ١٩

۲۰ سِیلاس یٔ ونیول او په بازار کښ ئ حاکمانو ته راکښل ۲۰ او چه هغوی ئ
سردارانو ته حاضر کړل و ئ ویل دي سړو چه یهُودیان دِي ځمونږ ښهر
۲۱ ډیر ربړوي ۲۱ او په داسي رسمونو خبر راکوِي چه مونږ ته روا نه دِي چه قبول
۲۲ ئ کړو او عمل پرِ وکړُو ځکه چه مونږ رومیان یو ۲۲ نو خلقو په دوي هجوم
وکړ او سردارانو جامي دَ دوي څیري کړي حکم ئ وکړ چه په لښتو دِ ووهلي شِي
۲۳ ۲۳ او چه په ډیرو لښتو ئ ووهل نو په بندیخانه کښ ئ واچول او په
۲۴ داروغه دَ زندان ئ تاکید وکړ چه هغوي دِ محکم وساتِي ۲۴ او چه په دي
شان ئ حکم بیاموند نو هغوي ئ په دننه بندیخانئ کښ واچول او دَ دوي
۲۵ پښي ئ په کُندي کښ مضبوطي کړي ۲۵ او پَولُس او سِیلاس په نیمه شپه
۲۶ کښ دُعا کوله او دَ اُلله مدحه ئ ویله او بندیانو ترِ به اوریدل ۲۶ چه
ناڅاپه یَوه لویه زلزله شوه تر دي حده چه بنیادونه دَ بندِیخانئ وخوځیدل
۲۷ نو په هغه دم ټول ورونه پرانتلي شول او له ټولو نه زنځیرونه پریوتل ۲۷ او
چه داروغه دَ بندیخانئ وِیښ شه او ورونه ئ پرانتلي ولیدل نو تُوره ئ
وویستله و ئ غوښتل چه خپل ځان مړ کړِي په دي گمان چه بندیان
۲۸ تښتیدلي دِي ۲۸ لیکن پَولُس په لوړ آواز ورته ناري کړي و ئ ویل چه
۲۹ ځان خپل ته ضرر مه رسَوه ځکه چه مونږ ټول دلي یُو ۲۹ نو رڼایئ وغوښتله
۳۰ دننه ئ وردوکړ او لړزیدونکي دَ پَولُس او دَ سِیلاس دَ وړاندِ پریوت ۳۰ بیا
ئ هغه و ویستل و ئ ویل اي خاوندانو چه ما ته څه کول باید دِي چه
۳۱ زه وبخښلي شم ۳۱ و ئ ویل چه په خداوند یسوع باندِ ایمان راوړه نو ته
۳۲ او خیلخانه ستا به وبخښلي شِي ۳۲ نو دوي کلام دَ اَلله هغه ته سره له ټولي
۳۳ خیلخانئ دَ هغه ووایه ۳۳ نو دوي ئ په هغه ساعت دَ شپي کښ واخستل
او پرهارونه ئ ووینځل او هغه په خپله او ټولو دَ هغه فی الحاله بپتسما
۳۴ واخسته ۳۴ او دوي ئ کور خپل ته وخیژول او دسترخوان ئ دَ دوي دَ وړاندِ
کښښود او هغه له ټولي خیلخانئ خپلي سره ئ خوشحالي کوله ځکه چه په
اَلله ئ ایمان راوړ

۳۵ اوچه ورځ شوه نو سردارانو چوبداران واستول وئي ويل چه ۳۵
هغه سړي پريږده ۳۶ نو داروغه پَولُس په دي خبري خبر کړ چه سردارانو ۳۶
را واستول چه تاسو خلاص شئ نو اوس را ووزئ په سلامتيا سره روان
شئ ۳۷ ليکن پَولُس هغوي ته ووِ مونږ چه رُومِيان سړي يُو په ښکاره او ۳۷
بي حجت ئي په کوړو ووهلُو بنديخاني ته ئي واچولُو او اوس مو په پټه
وباسي بلکه په خپله دِ راشي وموِ باسي ۳۸ نو چوبدارانو دا خبري سردارانو ۳۸
ته ووَيلي اوچه هغوي واوريدل چه رُومِيان دِي نو ووَيريدل ۳۹ او راغلل ۳۹
هغوي ته ئي التماس وکړ او را وئي يستل او سوال ئي ورته وکړ چه له
ښهرَ ووزي ۴۰ نو له بنديخاني نه راووتل دَ ليديّه کره ورننه وتل او ورونړه ۴۰
ئي وليدل او تسلي ئي ورکړه او روان شول ٭

## اووه لسم باب

۱ نو چه دوي له اَمفِپولُس او اَپلوني نه تير شول تِسَلنِيکي ته راغلل چه ۱
هلته عبادتخانه دَ يَهُوديانو وه ۲ نو پَولُس دَ خپل عادت په موافق ۲
دوي ته ورننه وت په دري سَبتُونو کښ ئي له صَحِيفو نه له هغو سره
بحث کاوه ۳ او واضح او ظاهر کاوه ئي چه لازم وه چه مسيح زحمت ۳
وزغمي او له مړو نه پورته شي - او يسوع چه زه ئي تاسو ته خبر درکوم
هم هغه مسيح دي ۴ او ځينو له هغو نه قبول کړ او له پَولُس او له سِيلاس ۴
سره وصل شول او له تقوىٰ دارانو يُونانيانو نه ډير ټولي او له اشرافو
ښځو نه چه لږي نه وي ۵ ليکن بي ايمانو يَهُوديانو غيرت وکړ څو تنه ۵
شريران سړي ئي له بازارونو نه واخستل او ټولي ئي جمع کړل او ښهر ئي
وخوزاوه او دياسُون په کور ودريدل وئي غوښتل چه دوي خلقو ته حاضر
کړي ۶ او چه دوي ئي بيا نه موندل ياسُون او څو ورونړه نور ئي حاکمانو ۶
دَ ښهر ته راکښل ناري وهونکي شول چه هغوي چه عالم ئي واړاوه اوس
دلته هم راغلِي دِي ۷ او ياسُون هغوي قبول کړي دِي او دغه ټول دَ قيصر ۷
دَ حکمونو په خلاف کار کوِي وايي چه بادشاه بل دَي يعني يسوع ۸ نو ټولي ۸

۹ اوحاکمان دَ ښهر یُ دَدي خبرې په آوریدلو سره پریشانَ کړل ۹ اوله یاسُون
او له نورو یُ ضمانت واخست او هغوي یُ رخصت کړل
۱۰ ۱۰ او ورونړو پولُس او سِیلاس په هغه دم په شپه کښ بیریه ته بهر
۱۱ واستول او هغوي چه هلته ورسیدل دَ یهُودیانو جماعت ته ورغلل ۱۱ او دغه
له هغو نه چه په تِسّلونیکي کښ وُو زیات اشراف وُو ځکه چه په پوره خوښۍ
سره یُ کلام قبول کړ او هره ورځ یُ په صَحِیفو کښ تحقیق کاوه چه کنړه
۱۲ دا څیزونه داسي دِي څه ؟ ۱۲ نو له هغوي نه ډېرو ایمان راوړ او له اشرافو
۱۳ ښځو دَ یُونانیانو او له سړو چه لږ نه وُو ۱۳ او چه یهُودیان له تِسّلونیکي خبر
شول چه په بیریه کښ هم له پولُس نه په کلام دَ الله وعظ کیږي هلته هم
۱۴ ورغلل ټولي یُ ولمسول او و یُ خوځول ۱۴ نو هغه وقت ورونړو بي درنګ پولُس
واستاوه چه لاړ شي دَ دریاب په لوري لیکن سِیلاس له تِموتاؤس سره هلته
۱۵ پاتي شول ۱۵ او هغوي چه دَ پولُس راوستونکي وُو دي یُ اَتِینِي ته بوت او چه
دَ سِیلاس او دَ تِموتاؤس دَپاره یُ حُکم واخست چه په ډېره بیړه سره دِ ده
ته ورشي روان شول
۱۶ ۱۶ لیکن هرکله چه پولُس په اَتِینِي کښ دَدوي انتظار کاوه رُوح دَده
۱۷ په ده کښ پریشانَ شه چه و یُ لیدل چه ښهر له بتانو ډک دي ۱۷ نو په
جماعت کښ له یهُودیانو او له تَقوئ دارانو سره او په بازار کښ هره ورځ چه
۱۸ به یُ له چا سره ملاقات کاوه مباحثه به یُ کوله ۱۸ او ځیني له فیلسُوفانو دَ
اِپِیکُوریي او سْتوِایکي ورباندِ راغلل ځینو ویل چه دا ځَک وهونکي څه غواړي چه
وایِي او نورو ویل چه معلومیږي چه دي دَ پردو خدایانو واعظ دي ځکه چه
۱۹ دوي ته یُ په یسوع او په قیامت زیري ورکاوه ۱۹ نو دي یُ ونیو او اَرِیُوپِیګوس
ته یُ دروست و یُ ویل چه کنړه مونږ پیژندل توانیږو څه ؟ چه دغه نوي تعلیم
۲۰ چه ته پري خبري کوي څه دي ۲۰ ځکه ته بیګانه خبري څمونږ په غوږونو کښ رسوي
۲۱ نو غواړو چه پوه شُو چه له دغو څیزونو نه څه مطلب دي ۲۱ ځکه چه ټولو خلقو
دَ اَتِینِي او بیګانهُو اوسیدونکو دَ هغه ځاي بي له اوریدلو او ویلو دَ تازه

ښيزونو فراغت نه لاره ۲۲ نو پَولُس په مينځ دَ اَرْيُوپَيْگُوس ودريدل وَ ﻲ ويل ۲۲
اي دَ اَتِيني سړو تاسو له هرې وجهې نه ډير عبادت کونکي وينم ۲۳ ځکه ۲۳
چه زه تيريدلم او ستاسو معبودانو ته مې نظر وکړ نو يوه مذبح مې وموندله
چه په هغه باندې نامعلوم خداي ته کنودلي شوي وه نو په هغه چه تاسو
عبادت ورته کوئې بې پيژاندلو هم په هغه زه تاسو ته خبر درکوم ۲۴ هغه اَلله ۲۴
چه جهان او هغه څه چه په هغه کښې دي پيدا ئي کړل هغه مالک دَ آسمان
او دَ زمکې دَي دَ لاس په جوړو شويو هيکلو کښې نه اوسي ۲۵ او نه له ۲۵
لاسونو دَ سړو خدمت اخلي چه گويا څه ښيز ته محتاج دَي چه په خپله
ټولو ښيزونو ته ژوند او سا او هر ښيز ورکوي ۲۶ او له يَو نه ئي دَ سړو ۲۶
هر قوم جوړ کړ تاچه په ټول روي زمين استوگنه کوي او هغوي ته ئي
مقرري زمانې او دَ استوگنې حدونه ئي مقرر کړل ۲۷ تاچه دَ اَلله طلب وکړي ۲۷
چه گنډې دوي په لټولو سره بياموئې سره له دي چه له هيڅ يَوه له موږ
نه لرې نه دي ۲۸ ځکه چه موږ په ده کښې ژوند او حرکت او وجود لرُو لکه ۲۸
ښينو له شاعرانو ستاسي هم ويلي دي چه موږ هم دَ ده له نسلَ يُو ۲۹ نو ۲۹
هر کله چه موږ دَ اَلله نسل يُو نو بايده نه دي چه موږ گمان وکړو چه
اُلُوهِيَتْ له سرو يا له سپينو زرو يا له کاڼې چه دَ سړي له هنره او دَ
کاريگرې نقش کړي شوي سره مشابهت لري ۳۰ نو اَلله دَ جهالت زمانو ته ۳۰
و نه کتل ليکن اوس ټولو سړو ته په هر ځاي کښې حکم ورکوي چه توبه
کړئې ۳۱ ځکه چه ده يَوه ورځ مقرّره کړي ده چه په هغې کښې به دَ عالم عدالت ۳۱
په صداقت سره وکړي په هغه سړي چه مقرّر ئي کړ او ټولو ته ئي په دې امان
ورکړ چه له مړو ئي پورته کړ
۳۲ هر کله چه هغوي ذکر دَ قيامت دَ مړو واوريده نو ښينو ټوقې کولې ۳۲
او ښينو ويل چه بيا به هم دغه له تا نه اورُو ۳۳ او دا هسي پَولُس دَ دوي ۳۳
له مينځ نه ووت ۳۴ ليکن څو تنه چه له ده سره پيوست شول ايمان ئي راوړ ۳۴
له هغو نه ديونيسيُوس اريوپاگي او يَوې ښځې دَ مَرَش نوُم او څو نور ورسره

# اتلسم باب

۱ ۲ ۱ او پس له دي نه له اَتینې نه لاړ شه او قُرنتُوس ته راغي ۲ نو یو یَهُودِي
سړي اَقِیلاؔ نُوم ئې بیاموند چه په اصل پَنطِي وه چه له اطالیي څخه په دې ورځو کښې پَرِسکِلا
سره نوي راغلي وه ولي چه کلودِیُوس حکم کړي وه چه ټول یَهُودیان دِ له
۳ رُوم نه ووزِي نو هغه دوي ته ورغي ۳ اوچه له دوي سره ئې یوکسب وه نو له دوي
۴ سره پاتې شه او کار ئې کاوه ځکه چه په کسب کښې خیمهَ دوزان وُو ۴ او هر
سبت ئې په جماعت کښې خبري کولي یهودیان او یُونانیان ئې معتقد کول
۵ ۵ لیکن چه سِیلاس او تِیمُوتاوُس له مَکادُونیې نه کوز راغلل نو پَولُس
په رُوح کښې مَجبُور شه یَهُودیانو ته ئې شاهدِي ورکوله چه یسوع هغه مسیح
۶ دي ۶ لیکن چه هغوي مخالفت کاوه او کفر ئې وایه نو ده خپلي جامي په هغوي
وڅنډلي و ئې ویل چه ستاسي خون ستاسي په سرونو دَي زه پاک یم
۷ پس له دي به غیر قومونو ته ځم ۷ نو له هغه ځاي نه لاړ شه کور دَ یو
خداي‌پرست سړِي ته چه تِیتَس نوُم ئې وه راغي چه کور ئې له جماعت سره
۸ پیوست وه ۸ لیکن کریسپُس سردار دَ جماعت له ټولي خیلخانې خپلي سره
په خداوند ایمان راوړ او ډیرو له قُرَنتیانو چه وائې وریدل ایمان ئې راوړ
۹ او بپتسما ئې بیاموندله ۹ او یوه شپه په رُویا کښې خداوند پَولُس ته وویل
ویره مه کوه بلکه خبره کوه او چُپ مه اوسه ځکه چه زه له تا سره یم او
۱۰ هیڅوک به په تا ییښ نه شِي چه تا ته آزار ورسوِي ۱۰ ځکه چه په دي ښهر
۱۱ کښې ځما خلق ډیر دي ۱۱ نو دي یو کال شپږ میاشتي په هغه ځاي کښې پاتې
شه هغوي ته ئې په کلام دَ الله تعلیم ورکاوه
۱۲ ۱۲ لیکن چه گَلِیُون حاکم دَ اخائیې وه یَهُودیانو په اتفاق سره په پَولُس
۱۳ ودَریدل او دَ حاکم دَ کرسيِ دَ وړاندِ ئې راوست ۱۳ و ئې ویل چه دا سړي
۱۴ خلق معتقد کوِي چه الله ته مخالف له توریت ته عبادت وکړِي ۱۴ لیکن
چه پَولُس وغوښتل چه خوله پرانزِي گَلِیُون یَهُودیانو ته وویل چه که چري

څه ظلم يا ناکاره بدکارِي وَي نو اي يَهُودِيانو ځاي لَي لاره چه ما ستاسو زغم
۱۵ کړي وي ۱۵ ليکن چه دغه مسئله ده په باب دَ خبرو او دَ نُومونو او ستاسو
دَ توريت نو تاسي په خپله وګورئ زه نه غواړم چه په دي کارونو کښ حاکم شم
۱۶ ۱۷ ۱۶ نو هغوي ټول ئي دَ کرسئ له خوا نه وشړل ۱۷ او ټولو سوسْتانِيس سردار
دَ جماعت ونيو دَ حاکم دَ کرسئ دَ وړاندِ ئي وواهه او ګلِيُون په دي خبرو
هيڅ پروا ونه کوله
۱۸ ۱۸ ليکن پَولُس ډيري ورځي نور پاتي شه له ورونړو نه رخصت شه
او سره دَ پرِسْکَلَّه او اَقِيلاً سورِيي ته لاهو شه او په کَنخْرِيه کښ ئي سر
۱۹ خپل وخرايه ځکه چه دا په ده نذر وه ۱۹ او چه اَفَسُس ته ورسيدل هغه
دواړه ئي هلته کښ پريښول او دي په خپله جماعت ته لاړ او له يَهُودِيانو
۲۰ سره ئي بحث کاوه ۲۰ او چه هغوي التماس ورته وکړ چه څه زياته مُدّه ورځه
۲۱ پاتي شي قبول ئي نه کړ ۲۱ بلکه رخصت ئي ور نه واخست و ئي ويل چه بيا
۲۲ به هم زه تاسو ته راوګرزم اِنْشَآءَالله نو له اَفَسُس نه لاهو شه ۲۲ او چه
قَيصَرِيي ته کوز شه اووخوت اوجماعت ته ئي سلام وکړ اَنطاکِيه ته راکوز
۲۳ شه ۲۳ او چه څو مُده ئي تيره کړه بيا ووت او په وطن دَ ګلاطِيي اوفرِيجِيي
کښ ځاي په ځاي ګرزيده او ټول شاګردان ئي قوِي کړل
۲۴ ۲۴ او يو يَهُودِي سړي اَپلَس نُومي په ذات اَسکندرِي چه فصيح سړي
۲۵ اوچه په صَحِيفو کښ قوِي وه اَفَسُس ته ورسيد ۲۵ هغه دَ خداوند په
لار کښ تربيت موندلي وه او په رُوح کښ سرګرم له حالَ دَ خداونده په
۲۶ بارِيکئ سره ئي خبري او تعليم کاوه فقط دَ يُوحَنَّا بپتسما ئي پيژندله ۲۶ هم
دغه په جماعت کښ په زوروتوب سره خبره شروع کړه اوچه پرِسْکَلاّ او
اَقِيلا دَده واوريدل خپل ځان څخه ئي راوست او په ډيري باريکي ئي لار دَ خداوند
۲۷ ورته بيان کړه ۲۷ نوچه دغه اراده دَ اخائِيي پوري دَ تلو وکړه نو ورونړو
شاګردانو ته ئي وليکل چه قبول دِ ئي کړي او چه دغه راغي نو له هغوي سره
چه په وسيله دَ فضل ئي ايمان راوړلي وه ډير مددګاري ئي ورسره وکړه۔

۲۸ ۲۸ ځکه چه په پوره قوّت سره ئې يَهُوديان په جار سره غلي کړل او له
صَحيفو نه ئې ښکاره کړل چه يسوع هغه مسيح دي ❖

## نولسم باب

۱ ۱ نو داسې وشول هرکله چه اَپلُس په کُرِنتُس کښې وه پَولُس پس له هغه
چه په پاس اطرافو کښې تير شه اَفِسُس ته ورغي او څو شاګردان ئې بيامونده
۲ ۲ هغوي ته ئې ووې له هغه وقت چه ايمان مو راوړ روُحُ اَلقُدُس مو بيامونده
۳ شه؟ ده نه ئې ووېل چه موږ اوريدلي نه دي چه روُحُ اَلقُدُس شته ۳ ور ته
ئې ووېل چه نو تاسې په څه بپتسما بيامونده؟ هغوي ور ته ووېل په
۴ بپتسما دَ يُوحَنّا ۴ نو پَولُس ووېل چه يُوحَنّا بپتسما ورکړه په بپتسمې دَ توبې
خلقو ته ئې ووېل چه په هغه دِ ايمان راوړي چه پس له ما نه راځي يعنې
۵ په يسوع ۵ نو چه هغوي واوريدل نو دَ خداوند يسوع په نوم ئې بپتسما
۶ واخسته ۶ او چه پَولُس لاسونه پرِ کيښوول نو روُحُ اَلقُدُس پرې راکوز شه او
۷ په ژبو ژبو ئې خبرې کولې او نبوّت ئې کاوه ۷ او ټول په قدر دَ دولسو سړيو وُو
۸ ۸ نو جماعت ته ننه وت تر دريو مياشتو پورې ئې په زړورتوب خبرې
۹ کولې بحث کونکي او قايل کونکي دَ اَللّٰه دَ بادشاهي په څيزونو کښې وه ۹ ليکن
چه ځينې سخت او نافرمان شول او دَ خلقو دَ وړاندِ دې لارې ته بدويونکي
وُو نو له هغوي نه په ډډه شه شاګردان ئې بيل کړل او هره ورځ ئې په
۱۰ مدرسې دَ تَرانُس نومي کښې بحث کاوه ۱۰ او په دې شان ئې دوه کاله تير شول
تر هسې حده چه کلام دَ خداوند يسوع په ټولو اوسيدونکو دَ اَسِيّا کښې که
۱۱ يَهُوديان که يُونانيان وُو واوريده ۱۱ او خداوند په لاس دَ پَولُس نادرې
۱۲ معجزې ښکاره کړې ۱۲ په هسې شان چه له جُسّې دَده دسمالونه او لنګونه
رنځورانو ته وړلې شول او رنځونه به ئې تلل او شرير ارواحونه به ترِ وتل
۱۳ ۱۳ ليکن څو تنو له سيلانې يَهُوديانو نه چه دمونه ئې اچول په هغوي چه شريران
روحونه به ئې لرل په نوم ويلو دَ نوم دَ خداوند يسوع ئې شروع وکړه ويل ئې
۱۴ چه تاسو ته په هغه يسوع چه پَولُس پرِ وعظ کوي قسم درکوو ۱۴ او اوو

تنو زامنو دَ اَسکِیوا یهُودِي دَ سردار کوهین دا کار کاوه ۱۵ او شرير رُوح دَ ۱۵
هغه په ځواب کښې ووِیل چه یسوع پیژنم او په پَولُس خبر یم لیکن تاسي
څوک یئ ۱۶ او هغه سړي چه شرير رُوح په کښې وه په هغوي ورټوپ کړ ۱۶
او غلبه ئي پرِ وکړه او پرِ زورآور شه تر هسي حده چه بربنړ او ژوبل
له هغه کور نه وتښتیدل ۱۷ او چه دا کار په ټولو یهُودیانو او یونانیانو اوسیدونکو ۱۷
دَ اَفِسُس کښې مشهور شه نو په هغو ټولو ویره پریوته نوُم دَ خداوند یسوع
لوي کیده ۱۸ او ډیر له هغو نه چه ایمان ئي راوړي وه راغلل او په خپلو عملونو ۱۸
ئي اقرار کاوه او ښکاره کول ئي ۱۹ او ډیر له هغو نه چه استعمال دَ سحر ئي ۱۹
کاوه خپل کتابونه ئي جمع کړل او دَ ټولِي دَ وړاندِ ئي وسیځل او چه قیمت دَ
هغوي شمار کړ پنځوس زره روپئ شولي ۲۰ په داسي زور سره کلام دَ خداوند ۲۰
زیاتیده او قوّتناک کیده

۲۱ او چه دا څیزونه پوره شول پَولُس په ځان کښې اراده وکړه چه دَ ۲۱
مَکِدونیې او دَ آخیې له تیریدلو نه پس به اورشلیم ته لاړ شِي و ئي ویل
چه پس له تللو دَ هغه ځاي نه بایده دِي چه زه رُوما هم ووینم ۲۲ نو دوه ۲۲
تنه ئي له هغو نه چه دَ ده خدمت ئي کاوه تیمُوتاؤُس او اَرَسطُوس ئي مَکِدُونیې
ته واستول او په خپله څو موده په اسیّا کښِ پاتي شه

۲۳ او په دغه وقت کښې ډیر شور ماشور دَ دي لاري په باب کښې پورته ۲۳
شه ۲۴ چه یو سړي دِیمیتریُوس نوُمي زرګر چه تصویرونه دَ بتخانې دَ اَرطامِس ۲۴
ئي له سپینو زرو نه جوړول او دَ کاریګرانو دَپارَ ئي ډیره فایده پیدا کوله –
۲۵ هغوي او نور چه داسي کار کونکي وُو راټول ئي کړل و ئي ویل اي سړو ۲۵
تاسي پوهیږئ چه له دي کسب څمونږ ګزاره ده ۲۶ او تاسي لیدلي او اوریدلي ۲۶
دِي چه نه تش په اَفِسَس کښې بلکه قریب په ټوله آسِیّا کښې دي پَولُس
ډیر خلق معتقد کړل او را و ئي ګرزول او وائي چه دغه چه په لاسونو جوړیږي
خدایان نه دِي ۲۷ نو نه تش ویره ده چه څمونږ کسب به سپک شي بلکه چه ۲۷
دا هیکل دَ لوي خداي اَرطامِس به هم سپک وشمیرلي شِي او لوِیي دَ هغه به

۲۸ هم چه ټوله آسیا او عالم ئې عبادت کوي ورکه شي ۲۸ او چه دا ئې واوریدل نو
له قهر ډک شول فریادکونکي ویل ئې چه بزرګه ده دغه ارطامیس د افسیانو
۲۹ ۲۹ نو ټول ښهر له شورماشور ډک شه او ټول په اتفاق سره د ننداري
ځاي ته ورغلیدل او غایوس او ارسترخس د مکدونیې چه ملګري د پولس وو
۳۰ له ځان سره ئې راښکل ۳۰ او چه پولس اراده وکړه چه د خلقو په مینځ کښ
۳۱ ورګډ شي نو شاګردانو نه پرېښود ۳۱ او ځینو له سردارانو د اسیا چه د ده
دوستان وو ده ته ئې واستاوه آرزو ئې وکړه چه خپل ځان دِ د ننداري ځاي
۳۲ ته نه سپاري ۳۲ او ځینو څه ناري کولې او ځینو څه ځکه چه ټولي پریشان وه
۳۳ او ډیر نه پوهیدل چه د څه د پاره جمع شوي دي ۳۳ نو اسکندریې د ټولي له
مینځ نه وکیښ یهودیانو هغه وړاندِ کاوه او اسکندر په خپل لاس اشارت
۳۴ کاوه و ئې غوښتل چه د خلقو د وړاندِ عذر وکړي ۳۴ نو چه هغوي وپیژاند چه
یهودي دي نو ټولو په یوه آواز قریب تر دوو ساعتو پوري ناري کولې چه بزرګ
۳۵ ده دغه ارطامسه د افسیانو ۳۵ بیا چه محتسب د ښهر ټولي قرار کړه وئې ویل
چه اي افسیانو کوم سړي دي چه نه پوهیږي چه ښهر د افسیانو خادم د
۳۶ لوي هیکل د ارطامسي دي او د هغه چه له زفس نه پریوت ۳۶ نو چه له
دي څیزونو انکار نه شئ کولي نو بایده دي چه په قرار شئ او هیڅ کار په
۳۷ بیړه و نه کړئ ۳۷ ځکه چه تاسي دغه سړي راوستلي دي چه نه غله د هیکلونو
۳۸ دي او نه خمونږ په خداي کفر ویونکي دي ۳۸ نو که دیمیتریوس او همکاران د ده
په چا دعوی لري نو د قضا ورځي مقرري دي او حاکمان شته دي یو په بل سره
۳۹ دِ مقدمه وکړي ۳۹ او که د بل څیز په باب کښ طلب کوئ نو د شرعي په
۴۰ محکمې به فیصله وشي ۴۰ ځکه چه مونږ په خطره کښ یو چه د دي نن ورځي د
فتني به حکم راباندِ وکړي شي چه د هغه هیڅ سبب نشته چه په هغه سره د دي
۴۱ بلوي جواب ورکړلي شو ۴۱ او چه دا ئې وویل نو جماعت ئې رخصت کړ ٭

## شلم باب

۱ ۱ او پس له دي چه شور تمام شه پولس شاګردانو ته واستاوه او چه نصیحت

ئي ورته وکړې نو رخصت ئي ورنه واخسته مَقدُونيې ته لاړ شه ۲ اوچه په ۲
هغو اطرافو کښې ډېر وګرزيده او په ډيرو خبرو ئي نصيحت ورته وکړې نو په يُونان
کښې راغي ۳ او درې مياشتې ئې تيرې کړې يهُوديان ورته په څو کښې وُو چه دَ ۳
سُوريه دَ تللو په نيّت کښې وه اراده ئې وکړه چه په لارې دَ مَقدُونيې وګرزي -
او سوپترُس څوي دَ پُورُو دَ بيريّيې او اَرِسترخُس او سِکُندُس تسَلُونيکي او ګايُوس ۴
دَ دربي او تيمُوتاوُس او تخِکُس او ترُوفيمُس دَ اُسِيا ۵ دغه وړاندې تللي وُو ۵
په ترواس کښې څمونږ منتظر وُو ۶ او پس له ورځو دَ فطيرو له فيلپي نه لاهو ۶
شولو او پس له پنځو ورځو هغوي ته په ترواس کښې ورسيدلو او هلته اووه
ورځي پاتي شولو
۷ او په اول دَ هفتې چه مونږ دَ ډوډۍ ماتولو دَپارَ جمع وُو پَولُس ورسره ۷
خبرې کولې په صبا اراده کونکي دَ تللو وه او ده کلام تر نيمې شپې پورې اوږد کړ
۸ او په هغې بالاخانې کښې چه مونږ جمع وُو ډېر چراغونه وُو ۹ او يَو يُوتيخُس نومې ۸ ۹
يو ځوان وه چه په دريچه کښې ناست وه چه په درانه خوب پروت او چه پَولُس
کلام اوږد کړ نو خوب پرِغالب شه او له دريم منزل نه لاندې راولويده او مړ
واخستلې شه ۱۰ نو هغه وقت پَولُس کوز راغي په هغه پريوت او په غيږ ۱۰
کښې ئي ونيو و ئې ويل چه مه پريشان کيږئ چه رُوح ئې په کښې دَي ۱۱ اوچه ۱۱
وخوت او ډوډۍ ئې ماته کړه او وئي خوړه او تر سحرَ پورې ډيرې خبرې ئې
کولې هم هغه سې روان شه ۱۲ او هغه ځوان ئي ژوندې بوت او ډيره تسلي ۱۲
ئې وموندله
۱۳ ليکن مونږ بيړۍ ته وړاندې وراغلو او اَسُوس ته لاهو شولو اراده ۱۳
کونکي وُو چه له هغه ځاي نه پَولُس واخلُو ځکه چه په دې طور ئي مقرّر
کړي وه چه غوښتل ئې چه تر هغه ځاي نه پياده لاړ شي ۱۴ نو چه په ۱۴
اَسُوس کښې مونږ سره ملِيا شه نو هغه مو واخست او مِتُليني ته راغلو
۱۵ بيا له هغه ځاي نه لاهو شولو په صبا دَخيُوس په برابر ورسيدلو او ۱۵
بله ورځ ساموس ته وصل شولو او يوه ورځ پس مِيليتُس ته ورسيدلو -

۱۶ ۱۶ ځکه پَولُس اراده لرله چه له اَفسُس نه لاهو شوي تیر شي هسي نه چه دَ
ده وقت په اُسِیّا کښ تیر شي ځکه چه ده تلوار کاوه که ممکن وي دَ پِنْطِیکاست
ورځ به په اورشلیم کښ وشي
۱۷ ۱۷ نو له مَلِیتُس نه ئي اَفسُس ته واستاوه بزرګان دَ کلیسي ئي را
۱۸ وبلل ۱۸ نو چه ده ته راغلل و ئي ویل
چه تاسو پوهیږئ له اولي ورځي نه چه زه اُسِیّا ته داخل شوم څرنګ
۱۹ په ټوله مده کښ له تاسي سره وم ۱۹ چه په ډیري عاجزئ او په ډیرو اوښکو
او په ازمایښتونو سره چه ما ته دَ یَهُودیانو له مکرونو راپیښ شول په خدمت
۲۰ دَ خداوند مشغول وم ۲۰ او څرنګ م دَ فایدو څیزونه منع نه کړل او په ښکاره
۲۱ م تعلیم درکاوه او کور په کور مِ تاسي خبر کړئ ۲۱ او یَهُودیانو او یُونانیانو
ته مِ هم په توبه اَللّه ته او په ایمان دَ خداوند څمونږ یسوع مسیح م شاهدي
۲۲ ورکوله ۲۲ او اوس ګوره تړلي شوي په روح اورشلیم ته ځم او له هغه څه
۲۳ چه هلته کښ به ما ته پیښ شي خبر نه یم ۲۳ بي له دي چه رُوحُ اَلقُدُس
په هر ښهر کښ شاهدي ورکوي چه بندونه او زحمتونه څما دَ پارَ انتظار
۲۴ کوي ۲۴ لیکن زه خپل رُوح هیڅ نه ګڼم چه په ما ګران دَي تاچه دور خپل
په خوښي سره تمام کړم او هغه خدمت چه له خداوند یسوع نه مِ موندلي
۲۵ دي چه په زیري دَ فضل دَ اَللّه شاهدي ولم ۲۵ او اوس ګوره زه پوهیږم
چه تاسي ټول چه ستاسي په مینځ کښ به بادشاهي دَ اَللّه زه وعظ کونکي
۲۶ تیر شوم بیا به مخ څما ونه وینئ ۲۶ دي دَ پارَ نونن ورځ زه له تاسي دا
۲۷ شاهدي غواړم چه زه دَ ټولو له خونَ پاک یم ۲۷ ځکه خبرول ستاسي م
۲۸ په ټول مصلحت دَ اَللّه کښ دریغ نه کړل ۲۸ نو خپل ځان ساتئ او هغه
ټول کندک چه رُوحُ اَلقُدُس تاسي په هغي نګهبان ودرولئ تاچه هغه
۲۹ کلیسیا دَ اَللّه وځروئ چه هغه ئي په خپلو وینو پیرودلي ده ۲۹ ځکه چه زه
پوهیږم چه پس څما له تلو به تُند لیوګان ستاسي په مینځ کښ درننه وزي
۳۰ چه په کندک به صرفه ونه کړي ۳۰ او ستاسي له خپله مینځ نه به داسئ سړي

پورته شي چه کړي خبري به کوي تا چه شاګردان په خپل خان پسي راکاږي -
۳۱ ۳۱ دي دَپاره بيدار اوسئ او په ياد کړئ چه تر دريو کالو پوري شپه او ورځ
۳۲ ونه دريدم چه په اوښکو سره هر يو له تاسي نه تنبيه کوم ۳۲ او اوس اي
وروڼو زه تاسي الله ته سپارم او دَ هغه دَ فضل کلام ته چه قادر دي
چه تاسي بنا کړي او چه دَ ټولو مُقدسانو په مينځ کښ تاسو ته ميراث درکړي
۳۳ ۳۴ ۳۳ ما دَ چا دَ سپينو يا دَ سرو زرو يا دَ جامي طمع ونه کړه ۳۴ بلکه تاسو
په خپله پوهيږئ چه دي لاسونو خما دَ حاجتونو او دَ هغو چه خما سره وُو
۳۵ خدمت کاوه ۳۵ دغه مِ ټول تاسو ته وښيل چه په داسي مشقت کولو سره
بايده دِي چه دَ ضعيفانو مددګاري کوئ او کلام دَ خداوند يسوع په ياد لرئ چه
ده وويل چه ورکول له اخستلو نه زيات مبارک دِي
۳۶ ۳۶ او چه دا ئي وويل او زنګنونه ئي ووهل له هغو ټولو سره ئي دُعا وکړه
۳۷ ۳۸ ۳۷ او ټولو لويه ژړا وکړه او دَ پَولُس په غاړه پريوتل ښکل کاوه ئي ۳۸ دير غمجن
شول خاص دَ هغي کلام دَپارَ چه وئي ويل چه پس له دي به مخ خما
ونه وينئ بيا ئي تر بيړئ ور سره جلب وکړ +

# يو ويشتم باب

۱ ۱ او داسي وشول چه له هغو نه موږ جدا شولو او په بيړئ کښ لاهو شولو
نو سم برابر کوس ته راغلو او بله ورځ رودس ته او له هغه ځاي نه پاترا
۲ ته ۲ نو چه موږ بيړئ بيا موندله چه فينيقيي ته پوري وتله نو هغي ته وښتو
۳ او لاهو شولو ۳ او چه قُبرُس راته ښکاره شه له هغه نه په کيڼ طرف
تير شولو او سُوريي ته روان شولو او صور ته راغلو ځکه چه په هغه
۴ ځاي کښ بيړئ خپل بار کوزاوه ۴ نو هغه شاګردان مو هلته بيا موندل او وه
ورځي په هغه ځاي کښ پاتي شولو او هغوي په رُوح سره پَولُس ته وويل چه
۵ اورشليم ته دِ ونه خيژي ۵ او چه هغه ورځي مو پوره کړي ووتو روان شولو
او ټول له ښځو او له هلکانو سره دَ ښهرَ تر بهر ئي راسره جلب کاوه او
۶ دَ درياب په غاړي مو زنګنونه ولګول دُعا مو وکړه ۶ او يو له بله مو رخصت

واخست او بيړۍ ته وختو او هغوي خپلو کورونو ته وګرځيدل
۷ ۷ او چه مونږ دَ درياب سفر پوره کړ له صور نه پتولمايس ته ورسيدلو
۸ او وروڼو ته مو سلام وکړ يوه ورځ ورځنه پاتې شولو ۸ په صبا روان شولو
قيصريې ته راغلو او په کور دَ فيلپس زيري کونکي کښ چه يو له هغو اوو تنو
۹ نه وه ننه وتو ورکره پاتي شولو ۹ او دَ هغه څلور پيغلي لوڼړه وي چه نبوت
۱۰ يې کاوه ۱۰ چه څو ورځي هلته کښ پاتې شولو نو له يهوديې نه يو نبي اغابوس
۱۱ نومي راکوز شه ۱۱ او مونږ ته راغي دَ پولس کمربند يې واخست او لاسونه او
پښي خپل يې وتړل و يې ويل روح القدس وايي چه يهوديان به په اورشليم
کښ هم هسې خاوند دَ دي کمربند وتړي او دَ غير قومونو په لاسونو به يې
۱۲ وسپاري ۱۲ چه دا مو واوريدل نو مونږ او دَ هغه ځاي خلقو التماس ورته
۱۳ وکړ چه اورشليم ته دِ نه خيژي ۱۳ نو پولس ورته په ځواب کښ وويل
څه کوئِ چه ژاړئِ او زړه مِ ماتوئ ځکه چه زه مستعد يم چه نه تش قيد
شم بلکه چه په اورشليم کښ مړ هم شم په خاطر دَ نوم دَ خداوند يسوع -
۱۴ ۱۴ او چه ده و نه منل نو مونږ چپ شولو وموويل چه اراده دَ خداوند دِ
وشي
۱۵ ۱۵ او پس له دغو ورځو دَ سفر دَ اسباب تياري مو وکړه اورشليم ته
۱۶ وختلو ۱۶ او څو تنه له شاګردانو نه دَ قيصريې هم له مونږ سره راغله له
ځان سره يې مناسونِ قپرسي چه وړاندني شاګرد وه هم بوته چه
مونږ دَ هغه ميلمانه شو
۱۷ ۱۷ او چه مونږ اورشليم ته ورسيدلو وروڼو په خوښۍ سره قبول کړو
۱۸ ۱۸ او په صبا پولس له مونږ سره يعقوب ته ننوت او ټول بزرګان حاضر شول
۱۹ ۱۹ نو چه هغو ته يې سلام وکړ هغه څه چه الله په واسطه دَ خدمت دَ ده دَ
۲۰ غير قومونو په مينځ کښ کړي وو بيل بيل يې بيان کړل ۲۰ نو چه هغو واوريدل
تمجيد دَ الله يې وکړ و يې ويل اي وروره ته وينې چه څو زره له يهوديانو نه
۲۱ چه ايمان يې راوړي دي او هغوي ټول دَ توريت غيرتناک دي ۲۱ او ستا په

حق کښې خبر شوي دي چه ته هغو ټولو يَهُودِيانو ته.چه دَ غير قومونو په مينځ
کښې دي تعليم ورکوي چه له موسىٰ نه وګرزي وايي چه اولاد خپل دِ نه سُنَّتَوِي
۲۲ او په موافق دَ سُنَّتونو دِ نه ځِي ۲۲ نو دي دَپارَ څه دي ټول به واوري چه ته
۲۳ راغلي يي ۲۳ نو هغه چه مونږ يې درته وايُو عمل پرِ وکړه څلور سړي
۲۴ دي چه په دوي نذر دي ۲۴ دغه واخله اوځان ورسره پاک کړه اوخرڅ پرِ وکړه
تاچه سرونه وَخريي نو به ټول پوه شِي چه هغه څه چه ستا په حق يې
اوريدلي دي هيڅ نه دي بلکه ته په خپله هم سم چليږي اودَ توريت ساتونکي
۲۵ يي ۲۵ ليکن دَ هغو په حق چه له غير قومونو يې ايمان راوړي دي مونږ ور
استولي دي اوحکم موکړي دي چه له قربانيو دَ بتانو نه او له وينو نه او له
۲۶ سري خپه شويو نه او له زنا نه دِ ځانونه وساتي ۲۶ نو پَولُس هغه سړي واخستل
بله ورځ يې طهارت ورسره وکړ هيکل ته ننه وت او له پوره کيدو دَ ورځو
دَ طهارت خبر يې ورکړ تر هغه پوري چه دَپارَ دَ هر يوه له هغو نه قرباني
وکړي شي

۲۷ ۲۷ او چه هغه اووه ورځي تماميدلو ته نژدي شوي څو يهُوديانو دَ آسِيا
۲۸ دي په هيکل کښې وليد ټول ټولي يې ولمساوه او لاسونه يې ورواچول ۲۸ ناري
يې ووهلي چه اي اسرائيلو سړو مدد وکړِئ دغه دي هغه سړي چه په
خلاف دَ اُمّت اودَ توريت او دَدي مکان په هرځاي ټولو ته تعليم ورکوي
بلکه څو يُونانيان يې هم هيکل ته راننه يستلي دي او دا پاک ځاي پَليت کړي دي
۲۹ ۲۹ ځکه چه وړاندِ تروفيمس اَفَسِيي په ښهر کښې له ده سره ليدلي وه اوګمان
۳۰ يې کاوه چه پَولُس هغه هيکل ته ننه يست ۳۰ نو ټول ښهر وخوزيده اوخلق
ورونزغليدل او پَولُس يې ونيو او له هيکل نه يې بهر راکښِل او دستي دروازي
۳۱ بندي شوي ۳۱ او چه دَده دَ وژلو اراده يې وکړه سردار دَ سپاهيانو ته خبر
۳۲ ور ورسيده چه ټول اورشليم خوزيدلي دي ۳۲ نو في الحال يې سپاهيان او
صُوبداران واخستل او ورونزغليدل نو هغوي په ليدلو دَ سردار اودَ سپاهيانو
۳۳ له وهلو دَ پَولُس نه ودريدل ۳۳ نو سردار نژدي ورغي هغه يې ونيو او

حکم ئي ورکړ چه په دوو زنځیرونو دِ وتړلي شِي او پوښتنه ئي وکړه چه دا څوک
۳۴ دَي او څه ئي کړي دِي ۳۴ څینو په ټولي کښ په یوي خبري څینو په بلي ناري
وهلي او چه هغه په سَبَب دَ شورماشور نه توانیده چه په حقیقت پوه
۳۵ شِي نو حکم ئي وکړ چه قلعي ته دِ ئي راولي ۳۵ او چه پوړيَ ته ورسید اتفاق
۳۶ وشه چه سپاهیانو په سَبَب دَ اژدحام دَ ټولي هغه پورته کړ ۳۶ ځکه چه
ډیرخلق ورپسي شوي ناري ئي وهلي چه لري ئي کړه
۳۷ ۳۷ او چه پولُس نژدي شه چه قلعي ته ئي ننه باسي نو سردار ته ئي
وویل کنزه ما ته روا دِي چه تا ته څه ووایم؟ هغه ورته ووِ چه ته په یوناني
۳۸ پوهیږي څه؟ ۳۸ کنزه ته هغه مصري نه يي څه؟ چه څو ورځي وړاندِ له دي
نه دِ فتنه پورته کړه او هغه څلور زره قاتلان سړي دِ بیابان ته بوتلل-
۳۹ ۳۹ پولُس وویل زه یهُودِي سړي دَ قُلیقیي دَ طَرسُوس ښهري یم چه
بي نُوم او بي‌نښانه نه دَي او تا ته التماس کوم چه ته اذن راکړه چه زه له
۴۰ خلقو سره خبري وکړم ۴۰ او چه اذن ئي وسوند نو پولُس په پوړيَ ودریده او خلقو
ته ئي په لاس خپل اشارت وکړ او چه لویه خاموشي وشوه نو هغوي ته ئي
په عبراني ژبه آواز وکړه و ئي ویل +

## دوه ویشتم باب

۱ ۱ اي سړو ورونړو او پلرونو هغه حجّت څما چه تاسو ته ئي اوس وړاندِ
کوم واوریَ
۲ ۲ او چه هغوي واوریدل چه دي په عبراني ژبه ورسره خبري کوي
زیات چُپ شول نو ده ووِ
۳ ۳ چه زه یهُودِي سړي یم په طَرسُوس دَ قِلیقیي کښ پیدا شوي یم
او په دي ښهر کښ مِ تربیت موندلي دي دَ ګمالي‌ئیل په قدمونو کښ مِ په
باریکو دَ توریت دَ پلرونو مِ تعلیم موندلي دي او دَ الله دَپاره غیرتناک
۴ وم لکه چه نن ورځ تاسي ټول يئ ۴ او زه دَ دي لاري ترمرګه پوري ربړونکي
وم ترهسي حده چه سړي او ښځي مِ بندول بندیخانو ته به مِ سپارل-

لکه چه سردار کوهن او ټولو بزرګانو دَ جرګي په ما شاهدِي لي چه له دوي ۵
نه مِ خطونه دَ ورونړو دپارَ واخستل دَمِشق ته لاړم تاچه هغوي هم چه
هلته دِي بنديان کړم اورشليم ته يُ راولم چه سزا بيامومي ۶ او په تلو کښ ۶
چه دَمِشق ته نزدي شوم داسي وشول چه نزدي غرمه وه ناڅاپه يَو عظيم نُور
له آسمانه چاپېره څما وځليده ۷ نو په زمکه پريوتم او يَو آواز مِ واوريده چه ۷
ما ته وايي اي ساؤلَ ساؤلَ ولي مِ ربړوي ۸ ما ځواب ورکړ چه اي خداونده ۸
ته څوک يي راته يُ وويل زه يم هغه يسوع ناصرِي چه ته يُ ربړوي ۹ او ۹
هغوي چه راسره وُو نو نُور يُ وليد وويريدل ليکن آواز دَ هغه کس چه له
ماسره يُ خبري کولي وانه وريده ۱۰ ما وِو اي خداونده څه وکړم خداوند راته ۱۰
وويل چه پورته شه دَمِشق ته لاړ شه چه په هغه ځاي کښ به درته وويلي
شِي له هغو ټولو چه ستا دپارَ مقرر دِي چه وُ يُ کړي ۱۱ نو چه دَ هغه نُورَ ۱۱
له جلاله نابينا شوم نو هغوي چه راسره وُو له لاس يُ ونيولم دَمِشق ته يُ
راوستلم ۱۲ بيا يَو کس حَنانِيا نومي تقوىٰدار سړي په موافق دَ توريت چه په ۱۲
نزد دَ ټولو يَهُوديانو اوسيدونکو دَ هغه ځاي نيکنام وه ۱۳ هغه ما ته راغي ۱۳
او ودريده وُ يُ ويل اي ساؤلَ ورورَ بينا شه نو ما په هغه ساعت ورته
وکتل ۱۴ وُ يُ ويل چه الله څمونږ دَ پلرونو ته غوره کړي تاچه اراده دَده ۱۴
وپيژني او هغه صادق ويني او له خُلي يُ آواز واوري ۱۵ ځکه هغه چه ۱۵
تا ليدلي او اوريدلي دِي په نزد دَ ټولو سړو په ده شاهد شي ۱۶ او اوس ولي ۱۶
معطّلِي کوي پاڅه او بپتسما واخله او خپل ګناهونه دَده دَنُوم په ويلو باندِ ووينځه
۱۷ او داسي وشول چه اورشليم ته وګرزيدم او په هيکل کښ مِ دُعا کوله بيهوش ۱۷
شوم ۱۸ نو هغه مِ وليد چه راته وايي ژر شه او له اورشليم نه په بيړه ۱۸
بهر ووزه ځکه چه دوي به ستا شاهدِي څما په حق کښ قبوله نه کړي ۱۹ ما ۱۹
وويل اي خداونده هغوي پوهيږِي چه ما په هرجماعت کښ هغوي چه په تا
يُ ايمان راوړ قيد کول او وهل ۲۰ او چهويني ستا دَ شهيد اِستِيفانُوس ۲۰
توئولي شوي نو زه ولاړ وم او پرِ راضِي وم او دَده دَ قاتلانو جامي مِ ساتلي

۲۱ ۲۱ او ده ړاته ووِ لاړ شه چه زه به دِ له دي ځايِ نه لري غيرِ قومونو ته
- واستوم
۲۲ ۲۲ نو هغوي تر دي خبري پوري وا وريدل بيا ئي خپل آوازونه پورته کړل
وئي ويل چه دا بي سړي له زمکي نه ورک کړه ځکه چه دغه ته ژوندون
۲۳ مناسب نه دي ۲۳ او چه ناري کولي او جامي خپلي ئي غورزولي او خاوري ئي
۲۴ آلوزولي ۲۴ نو سردار حکم وکړ چه قلعي ته دِ ئي بوزي و ئي ويل چه دي دِ
په وهلو وپوښتيدلي شي تاچه معلوم شي چه په څه هغوي په ده باندِ داسي
۲۵ فرياد کوي ۲۵ او چه دي ئي په رسيو وتاړه نو پَولُس صوبه دار ته چه ولاړ وه
۲۶ وويل کَنزه تاسو ته روا ده چه رومي سړي بي له گرمولو په کوړو وهئِ ۲۶ چه
صوبدار دا واوريدل سردار ته ورغي هغه ئي خبر کړ و ئي ويل چه څه کول
۲۷ غواړي ځکه چه دا سړي رومي دي ۲۷ نو سردار راغي هغه ته ئي ووِ چه راته
۲۸ ووايه چه ته رومي يي څه؟ ده ووِ هو ۲۸ سردار ځواب ورکړ چه ما دا حق په
ډيرو نقدو سره حاصل کړي دَي پَولُس ووِ چه زه خو په هغه کښ پيدا
۲۹ شوي يم ۲۹ نو په هغه ساعت هغوي چه اراده دَ پوښتني کوله له ده نه
پردريدل او سردار هم ويريده دي دَپارَ چه پوه شه چه رومي دي او چه
تړلي ئي وه
۳۰ ۳۰ او په صباچه اراده ئي وه چه په يقين وپوهيږي چه يَهُوديان په څه
سَبَب شکايت پرِ کوِي دي ئي خلاص کړ او و ئي فرمايل چه سرداران کوهنان
او ټوله جرگه دِ حاضر شي او پَولُس ئي راښکته کړ او دَ دوي په منځ کښ
ئي ودراوه +

# درويشتم باب

۱ ۱ نو پَولُس جرگي ته ځير شه و ئي ويل اي سړو ورونړو ما تر نني ورځي پوري
۲ په ټول نيک تميز سره دَ الله په حضور زيست کړي دَي ۲ او حَنَّانِيا سردار
۳ کوهن ولاړو ته حکم ورکړ چه په خوله ئي ووهئِ ۳ پَولُس هغه ته ووِيل الله
به تا ووهِي اي سپين کړي شوِيَ ديوالَ کَنزه ته ناست يي چه په ما باندِ به

موافق دَ توریت حکم وکړي څه؟ او ته په خلاف دَ توریت ځما په وهلو حکم
٤ کوي؟ ٤ نو هغو ولاړو وویل کنزه سردار کوهن دَ الله ته بنکنځل کوي —
٥ ٥ پولُس وویل اي ورونړو زه نه پوهیدم چه سردار کوهن دَي ځکه چه
٦ لیکلي شوي دِي چه دَ خپل قوم حاکم ته بد مه وایه ٦ نو چه پولُس پوه شه
چه یو قسم له دغو نه صَدّوقیان او بل قسم فَرِیسیّان دِي نو په جرګه کښ
ئې ناري کړي چه اي سړیو ورونړو زه فریسي یم زوی دَ فَرِیسي او دَپارَ دَ اُمید
٧ او دَ قیامت دَ مړو راباندِ حکم کیږي ٧ چه دا ئې وویل نو دَ فَرِیسیّانو او دَ
٨ صَدّوقیانو په مینځ کښ جګړه پورته شوه او ټولي ځیري شه ٨ ځکه چه
صَدّوقیان وایي چه نه قیامت شته نه فرښتي نه رُوح او فَرِیسیّان په دواړو
٩ اقرار کوي ٩ نو ډیر شور ماشور پورته شه او کاتبان له فرقي دَ فَرِیسیّانو سره
جګړه وکړه وئي ویل چه په دي سړي کښ سو هیڅ بدِي موندلي نه دِه او
١٠ څه وشول کــه چري رُوح یا فرښتي ور سره خبري کړي وي ١٠ او چه جګړه
ډیره شوه نو سردار وویریده هسي نه چه پولُس ځیري کړي نو ئې سپاهیانو
ته حکم وکړ چه راکوز شئ او دَ هغي له مینځ نه ئې را ونیسئ او قلعي ته ئې
بوزئ

١١ ١١ او دَ هغي ورځي په شپه کښ خداوند ورته ودریده وئې ویل خاطر
جمع لره ځکه لکه چه په اورشَلیم کښ دِ ځما په حق شاهدِي ورکړه هم هسي
بایده دِي چه په رُوما کښ هم شاهدِي ورکړي
١٢ ١٢ او چه ورځ شوه نو ځینو یهُودیانو اتّفاق سره وکړ او په ځانونو ئې
حرام کړ وئې ویل چه نه به وخوري او نه به وڅښي څو چه ئې پولُس قتل
١٣ کړي نه وي ١٣ او هغه کسان چه دا قسم ئې وکړ له څلویښتو تنو نه زیات وُو
١٤ ١٤ نو دغه سردار کوهینانو او بزرګانو ته ورغلل. وئې ویل چه مونږ په
حرامو سره په ځان حرام کړي دِي چه هیڅ شَي به ونه څکو څو چه پولُس
١٥ ونه وژنُو ١٥ نو تاسي اوس له جرګي سره سردار خبر کړئ چه هغه تاسي ته
صبا له راکوز کړي چه ګویا تاسي اراده لري چه دَ ده په حال کښ زیات باریک

١٦ تحقیق کوئ او موږ هم تیار یو چه وړاندِ له نزدي کیدلو ئي قتل کړو ١٦ لیکن
خوریئ دَ پولُس دَدوي په پسوئ خبر شه لاړ شه او قلعي ته ننه وت او پولُس
١٧ ئي خبر کړ ١٧ نو پولُس یو له صوبدارانو راوباله و ئي ویل چه دا ځوان سردار له بوزهِ
١٨ ځکه چه یوه خبره لري چه هغه ته ئي وکړي ١٨ نو هغه ئي واخست او سردار ته
ئي بوت او و ئي ویل چه پولُس قیدي زه وبللم او خواست ئي وکړ و ئي ویل چه
١٩ دا ځوان سردار ته بوزه ځکه چه څه خبره لري چه تا ته ئي ووائي ١٩ نو سردار
دَ هغه لاس ونیو او ورستو شه او کوښي ئي ورنه پوښتنه وکړه درڅخه څه دي
٢٠ چه ما په هغه خبر کوي ٢٠ هغه ووېل چه یهودیانو اتفاق کړي دي چه له
تا نه خواست وکړي تا چه صبا له پولُس جرګي ته راکوز کړي چه ګویا هغوي اراده
٢١ لري چه دَ هغه په حق کښ زیات باریک تحقیق وکړي ٢١ نو ته ئي مه منه
ځکه چه دوي زیات له څلویښتو تنو نه ور ته په پسوئ کښ دي او په ځانونو
ئي حرام کړي دي چه نه به وخوري او نه به وڅښي څو چه هغه مړ نه کړي
٢٢ او اوس تیار او ستا دَ وعدي منتظر دي ٢٢ سردار هغه ځوان رخصت کړ
او تاکید ئي وکړ چه دا حال هیچا ته مه وایه چه زه دِ په دي حال خبر کړي
٢٣ یم ٢٣ نو دوه تنه ئي له صوبدارانو وبلل و ئي ویل چه دوه سوه سپاهیان
او اویا سواره او دوه سوه نیزه دار په دریم ساعت دَ شپي کښ تیار کړئ
٢٤ چه قیصریه ته لاړ شي ٢٤ او څاروي تیار کړي چه پولُس پرِ سور کړئ او په
٢٥ سلامتیا سره ئي فیلیکس حاکم ته ورسوئ ٢٥ او یو خط ئي په دي مضمون
ولیکه
٢٦ ٢٧ ٢٦ کلودیوُس لیسیَس حاکم فیلیکس بهادر ته سلام رسوي ٢٧ دا سړي
له یهودیانو نه ونیولي شه او له هغو نه په قتلولوه نو زه له سپاهیانو سره
٢٨ ورغلم خلاص مي کړ خبر کړي شوم چه رومي دَي ٢٨ او چه ومي غوښتل چه
معلوم ئي کړم چه په څه سبب په ده فریاد کوي دي مي دَ هغو جرګي ته ورکوز
٢٩ کړ ٢٩ نو ومي منده چه دَ خپل توریت په مسئلو کښ فریاد پرِ کوي لیکن
٣٠ هیڅ دعوی مستحقه دَ قتل یا دَ بندونو پري نه لري ٣٠ او چه خبر کړي شوم

چه یَهُودیان دَ دي سړي په پسوني کښ دِي نو دستي مِ هغه تا ته درواستاوه
او مُدَّعِیانو ته مِ هم حکم ورکړ چه ستا دَ وړاندِ دِ دعویٰ پر وکړي
۳۱ نو سپاهیانو ته لکه چه حکم وشه پَولُس ئي په شپه کښ ۳۱
واخست اَنتِیپَترِیس ته ئي ورساوه ۳۲ او په صبا ئي سواره پرېښول چه ۳۲
ورسره لاړ شِي او هغوي قلعي ته وجاروتل ۳۳ او هغوي چه قیصرِیي ۳۳
ته داخل شول خط ئي حاکم ته ورکړ او پَولُس ئي هم ور ته حاضر کړ۔
۳۴ او چه حاکم خط ولوست نو پوښتنه ئي وکړه چه دَ کومي صوبي دي او چه ۳۴
خبر شه چه دَ کِلِیکِیي دَي ۳۵ وئي ویل هر کله چه مدّعیان دِ حاضر شِي ۳۵
نو خبره به دِ واورم او حکم ئي وکړ چه په ماڼِئ دَ هِیرُودِیس کښ دِ وساتلي شِي۔

## څلیرویشتم باب

۱ او پس له پنځو ورځو حَنَّنیا سردار کوهن له څو بزرګانو او له یوه تَرتُلُس ۱
نومي فصیح سره ورکوز شول او په خلاف دَ پَولُس ئي حاکم ته خبر ورکړ
۲ او چه هغه وبللي شه نو تَرتُلس په شکایت شروع وکړه وئي ویل ۲
۳ چه مونږ ستا په واسطه ډېره سلامتیا حاصلونکي یُو او ستا ۳
له تدبیرَ دي قوم ته لوي احسانونه رسیدلي دِي په هر ځاي او په هر وقت
کښ په ټولي شکرګذاریٔ سره قبلوُو اي فِیلِکس بهادره ۴ لیکن دي دَپارَ ۴
چه زیات دِ معطّله نه کړم التماس کوم چه په مهرباني خپلي سره مِ مختصر
عرض واوري ۵ ځکه چه دا سړي مو مفسد او فتنه پورته کونکي بیا وموند ۵
په مینځ دَ هغو ټولو یَهُودیانو اوسیدونکو دَ عالم کښ او پیشوا دَ فرقي دَ نصاراؤ
۶ او چه دا ئي وغوښتل چه هیکل هم پلِیت کړِي نو مونږ دي ونیو اراده مو ۶
لرله چه په موافق دَ شریعت خپل په ده حکم وکړُو ۷ لیکن لِیسِیس سردار ۷
راغي او په ډېر زور سره ئي ځمونږ له لاسونو رانیو او حکم ئي وکړ چه دَ ده
مُدَّعِیان تا له درشِي ۸ او له ده نه پس له پوښتني کولو نه توانیږي چه په دي ۸
ټولو خیزونو چه مونږ پرِ دعویٰ کوُو پوه به شي ۹ بیا یَهُودیان ورسره متفق شول ۹
وئي ویل چه دا خبري داسي دِي

۱۰ ۱۰ او چه حاکم پَولُس ته اشارت وکړ چه خبره وکړي نو پَولُس ځواب ورکړ
له دې جهته چه زه پوهيږم چه ته له ډيرو کالو دَ دي قوم حاکم يي
۱۱ په ډيره خوښئ سره به دَ خپل کار دَپارَ حجّت راوړم ۱۱ ځکه چه ته پوهيدلي
شي چه له دوولسو ورځو م زياتي نه دِي چه اورشليم ته دَ عبادت کولو دَپارَ
۱۲ وختلم ۱۲ او دوي زه ونه موندلم چه په هيکل کښ م له چا سره بحث کاوه
او نه په جماعت کښ او نه په ښهر کښ چه په ټولي کښ مِ فساد پورته کاوه
۱۳ ۱۳ او نه توانيږي چه اوس تا ته هغه څه ثابت کړي چه په ما اوس دعویٰ کوي
۱۴ ۱۴ ليکن زه تا ته په دي اقرار کوم چه زه دَ هغي طريقي په موافق چه دوي ور
ته بدعت وايي ځمونږ دَ پلرونو الله ته عبادت کوم او په ټولو چه په توريت او
۱۵ په انبياؤ کښ ليکلي دِي ايمان راوړونکي يم ۱۵ او په الله مِ اميد دي چه
په هغه کښ دوي هم انتظار کوي چه قيامت به دَ راستانو او هم دَ ناراستانو
۱۶ وشِي ۱۶ دي دَپارَ زه هم په خپل ځان کوشش کوم تا چه له طرف دَ الله او
۱۷ دَ سړو ما لره مدام بي لغزشَ تميز وِي ۱۷ او پس له ډيرو کالو راغلم تا چه
۱۸ صَدَقي او قرباني دَ خپل قوم دَپارَ وکړم ۱۸ او په دغه کښ ځو تنو له يَهُودو
دَ آسيا په هيکل کښ پاک بياموندلم نه له ټولي سره او نه له شور سره-
۱۹ ۱۹ او بايده وه چه هغوي هم در ته حاضر وي که څه ځيز په ما لري دعویٰ دِ
۲۰ ئي وکړي ۲۰ يا دغه دِ په خپله ووايي که څه ګناه ئي راکښ موندلي وِي چه زه
۲۱ دَ جرګي دَ وړاندِ ولاړ وم ۲۱ مګر بي له دي يَو آواز نه چه دَ هغو په منځ
کښ ولاړ ناري مِ پرِ کولي چه په باب دَ قيامت دَ مړو له تاسو نه په ما
نن ورځ حکم کولي شِي
۲۲ ۲۲ او فيلکس ځکه چه دي دَدي طريقي په کارونو په ډير تحقيق سره
پوه شوي وه نو مهلت ئي ورکړ وَ ئي ويل هرکله چه ليسيئَس سردار راکوز شي نو
۲۳ زه به ستاسو دَ خبرو تحقيق وکړم ۲۳ او صوبدار ته ئي حکم وکړ چه پولس
وساتي او آزادي دِ ورکړي او هيڅوک دِ له ملګرو دَده نه منع کوي چه خدمت
ئي وکړي

۲۴ او پس له څو ورځو فیلکس له خپلې ښځې دُرُوسلا سره چه یَهُودِي ۲۴
وه راغی او پَولُس ئې طلب کړ او له ده نه ئې له ایمانه چه په یسوع مسیح وه
واوریدل ۲۵ او چه له صَداقت او له پرهیزګارئ او له راتلونکي عدالتَ ئې خبري ۲۵
کولې فیلکس ولړزیده ځواب ئې ورکړ چه اوس ورځه او هرکله چه فرصت
مِ وشي بیا به دِ راوبولم ۲۶ او امید ئې هم لاره چه پَولُس به روپئ ورکړي دي ۲۶
دَپاره ئې وار په وار حاضر کاوه او خبري ئې ورسره کولې ۲۷ لیکن چه دوه کاله ۲۷
پوره شول پُورکیُوس فیستُس ئې قایم مقام شه او فیلکس وغوښتل چه یَهُودیان
خوشحال کړي نو پَولُس ئې په قید کښ پریښوِد ٭

# پنځه ویشتم باب

۱ نو فِستُس چه په صوبې کښ ورغی پس له دریو ورځو له قیصریې نه اورشلیم ۱
ته وخوت ۲ نو سردار کوهن او بزرګانو دَ یَهُودیانو په خلاف دَ پَولُس خبر ورکړ او ۲
له ده نه ئې التماس وکړ ۳ دَ دي احسان تر نه طلبګار وُو چه هغه اورشلیم ۳
ته واستوي لو پسولي کونکي وُو چه په لاري کښ ئې قتل کړي ۴ لیکن فِستُس ۴
ځواب ورکړ چه پَولُس دِ په قیصریه کښ وساتلې شي ځکه چه په خپله ئې
اراده لرله چه زر لاړ شي ۵ او وئې ویل چه هغوي چه له تاسو نه توانیږي ۵
نو له ما سره دِ کوز شي او که په دغه سړي کښ څه وي نو دِ دعوي پر وکړي
۶ نو چه له لسو ورځو نه ئې زیاتي ور سره تیري کړي نو قیصریې ته ۶
کوز شه او صبا په کرسي دَ حکومت کښیناست او حکم ئې وکړ چه پَولُس
دِ راوستلې شي ۷ او چه حاضر شه نو هغه یَهُودیان چه له اورشلیم نه ۷
راکوز شوي وُو له ده نه چاپیره ودریدل او ډیر او درانه نالشونه ئې په پَولُس
وکړل او پرِ ثابتولي ئې نه شول ۸ او پَولُس حجت ورکړ چه ما نه دَ توریت دَ ۸
یَهُودیانو او نه دَ هیکل او نه دَ قیصر څه ګناه کړي ده ۹ لیکن فِستُس ۹
وغوښتل چه یَهُودیان خوشحالَ کړي نو پَولُس ته ئې ځواب ورکړ وئې ویل
چه نه غواړي چه اورشلیم ته وخیژي څه؟ تا چه هلته زه په دي څیزونو
په تا حکم وکړم ۱۰ پَولُس وویل چه زه دَ قیصر کرسئ څخه ولاړ یم باید دي ۱۰

چه دلته په ما حکم وشي ما په يهُوديانو هيڅ ظلم کړي نه دي لکه چه ته هم
۱۱ ښه پوهيږې ۱۱ ځکه چه که زه گنهگار يم او يا مې څه کار کړي دَي چه مستحق
دَ مرگ وِي نو له مرِ کيدلو نه عذر نه کوم ليکن که له هغو نه چه دوي
يې په ما دعوىٰ کوِي هيڅ څيز نه وِي هيڅوک نه توانيږي چه هغوي ته مِ
۱۲ وسپارِي په قيصر رَفعَ دَ دعوي کوم ۱۲ هغه وقت چه فِستُس دَ اهلِ جرگې سره
خبري وکړي ده ته يې ځواب ورکړ چه قيصر ته دَ دِ دعوي رَفعَ کړې ده نو
قيصر ته به لاړ شي
۱۳ ۱۳ او پس له تيريدلو دَ څو ورځو اگرِپّا بادشاه او بَرنِيکي قيصرِيې ته
۱۴ ورغله چه فِستُس ته سلام وکړي ۱۴ او چه هلته يې ډيري ورځې تيري
کړي نو فِستُس بادشاه ته دَ پَولُس حال پيش کړ و يې ويل يو سړي دي
۱۵ چه له فِيلِکس بندِي پريښي شوي دَي ۱۵ او چه زه په اورشليم کښ وم سردار
کوهنانو او بزرگانو دَ يهُوديانو دَ ده په حق کښ ما ته عرض وکړ پر حکم
۱۶ غوښتونکي وُو ۱۶ ما هغوي ته ځواب ورکړ چه دَ رُومِيانو عادت نه دَي
چه څوک مرگ ته وسپارِي وړاند له هغه چه مدعاعليه خپلو مدّعيانو ته
۱۷ روبرو شِي او ده ته وار وکړي چه دَ دوي دَ دعوي ځواب وکړي ۱۷ او چه هغوي
دلته جمع شول نو بي درنگ به صبا په کرسيِ دَ حکومت کښيناستم او حکم
۱۸ مِ وکړ چه هغه سړي دِ راوستلي شِي ۱۸ او چه مدعيان يې پرِ ودريدل نو
۱۹ له هغه چه ما گمان کاوه هيڅ بدِي يې پرِ رانه وړه ۱۹ بلکه دَ خپل دين په
باب يې دَ څو مسئلو خبري ورسره کولي او په حق دَ يو يسوع نومي مړي کښ
۲۰ چه پَولُس به ويل چه ژوندي دَي ۲۰ او چه زه په داسې مسئله کښ شکمند
وم نو ده ته مِ وويل چه نه غواړي چه اورشليم ته لاړ شي چه دَ دي څيزونو
۲۱ په باب هلته درباندِ حکم وشِي ۲۱ ليکن چه پَولُس رفعه دَ دعوي وکړه
چه دَ اگستُس پوښتني ته دِ وساتلي شي نو ما دَ ده په ساتلو حکم وکړ
۲۲ څو چه قيصر ته واستولي شِي ۲۲ نو اگرِپّا فِستس ته ووِ چه زه هم غواړم
چه دَ دي سړي واورم ده ورته ووِ چه صبا به يې واوري

۲۳ نو صبا چه اَگرِپّا او برنیکي په لوي دبدبي سره راغله او دَ اوریدلو ۲۳
ځاي ته له سردارانو او له غټانو دَ ښهر سره ننه وتل نو دَ فِستُس
په حکم سره پَولُس راوستلي شه ۲۴ نو فِستُس ووِیل چه اي اَگرِپّا ۲۴
بادشاه او ټولو سړو چه له مونږ سره حاضر يئ تاسي دغه سړي چه
دَده په حق کښې واړه ټولي دَ یَهُودیانو په اورشلیم کښې او دلته ناري
کوَلي له ما نه ئي خواست وکړ چه بایده نه دي چه نور ژوندي پاتي شي ۲۵ ولیکن ۲۵
چه ما معلوم کړه چه ده هیڅ کړي نه دي چه لایق دَ مرګ شي او ده دعوي
خپله اَگسَتُس ته رَفعَ کړي ده اراده مِ وکړه چه وا ئي ستوم ۲۶ او چه دده په حق ۲۶
کښې څه یقیني خبره نه لرم تا چه خداوند ته ئي ولیکم له دي سببَ مِ هغه
تاسو ته خاص ستا حِضُور ته اي اَگرِپّا بادشاه راوست تا چه تحقیق ئي وشي
نو کُندِ وِي چه څه بیاموم چه وئي لیکم ۲۷ ځکه چه ما ته مناسب نه ښکاريږي ۲۷
چه قیدي ئي واستوم او هغه دعویٰ چه په ده وِي ظاهره ئي نه کړم ✦

## شپږویشتم باب

۱ نو اَگرِپّا پَولُس ته ووِ در ته اذن دي چه دَ خپل ځان دَپارَ خبري وکړي ۱
نو پَولُس لاس خپل اوږد کړ او عذر خپل ئي بیان کړ
۲ اي اَگرِپّا بادشاه زه سعادت خپل په دي کښې گڼړم چه نن ورځ په ۲
حضُور ستا عذر وکړم له هغو ټولو نه چه یَهُودیان مِ پرِ کرمِي ۳ خاص چه ۳
ته په ټولو رسمونو او په هغو مسئلو چه دَ یَهُودو په مینځ کښې دِي عالِم يي
دي دَپارَ زه تا ته التماس کوم چه په صبر سره مِ واوره ۴ نو چلن ځما ۴
له ځوانئ نه چه له ابتدا نه مِ دَ خپل قوم په مینځ کښې او په اورشلیم کښې
وه ټول یَهُودیان پرِ پوهیږي ۵ او له اوّل راپاندِ خبر دِي که غواړي نو شاهدي ۵
دِ وِ لِي چه زه په موافق دَ مذهب دَ ډیري پرهیزګاري فرقي خپلي فرِیسي وم
۶ او اوس په سَبَب دَ اسید دَ هغي وعدي چه له الله نه ځمونږ له پلرونو ۶
سره وشوه زه ولاړ یم چه حکم راپاندِ وشي ۷ هغه چه دولس فرقي ځمونږ ۷
په کوشش سره شپه او ورځ عبادت کونکي دِي دَ هغي وعدي دَ حاصلو په امید

بانډِ په سَبَب دَ هغي امید اي اَگرِپّا بادشاه له یَهُودیانو په ما بانډِ دعوي کیږِي
٨ ٨ نو ځله ستاسو په نزد هغه بي‌اعتبار گڼلِي شِي چه الله به مړِي پورته
٩ کړِي ٩ ما هم په خپل ځان کښ خیال وکړ چه بایده دِي چه زه ډیر کارونه
١٠ په خلاف دَ نوُم دَ یسُوع ناصرِي وکړم ١٠ او دا مِ هم په اورشلیم کښ وکړل او دَ
سردار کوهینانو نه مِ اختیار واخست نو ډیر له مقدّسانو مِ هم په بندیخانو
١١ کښ بند کړل او چه هغوي به قتل کیدل نو ما به هِسک پرِاچاوه ١١ او په
ټولو جماعتونو کښ به مِ هغوي ډیر ځله آزارول جبر به مِ پرِ کاوه چه کفر دِ
ووایِي او چه له حد زیات پرِ غضبناک شوم نو به تر بهر نښهرونو پوري ورپسي وم
١٢ ١٢ او په دي کښ چه زه په اختیار او په حکم دَ سردار کوهینانو دَمِشق ته
١٣ تلونکي وم ١٣ په لاري کښ مِ په نیمهَ ورځ اي بادشاه یو نوُر له آسمانه ولید
له نمر له رڼا نه زیات چه گیرچاپیر ځما نه او دَ هغو چه راسره تلونکِي وُو
١٤ وځلیده ١٤ او چه مونږ ټول په زمکه پریوتلُو نو دَ عبرانِئ په ژبه مِ یو آواز واورید
چه راته ویونکي وه چه اي ساؤلَ ساؤلَ ځله راپسي يي تا له سخته ده چه په
١٥ میخونو لته وهي ١٥ ما ووِ اي خداونده ته څوک يي او خداوند ووِیل زه یسوع یم
١٦ هغه چه ته ورپسي شوي يي ١٦ لیکن پورته شه په خپلو پښو ودریږه زه ځکه
په تا ظاهر شوي یم تا چه خادم او شاهد دِ مقرّر کړم په هغو څیزونو کښ
١٧ چه تا ولیدلِم او هم په هغه څه چه په کښ به درته ظاهر شم ١٧ او تا به
آزاد کړم له هغه امت او له غیر قومونو چه زه دِ اوس وراستوم تا چه
١٨ سترگي دَ هغو پرانهزِي ١٨ تا چه له تیارِي نه نوُر ته او له طاقت دَ شیطانَ
الله ته رجوع وکړِي تر څو چه مَغفِرَت دَ گناهونو او میراثِ دَ مقدّسانو
١٩ په سیڅ کښ په واسطه دَ ایمان چه په ما دي بیامومِي ١٩ له هغه وقتَ نه
٢٠ اي اگرِپّا بادشاه زه له آسماني رؤیا نافرمانَ نه شوم ٢٠ بلکه اول مِ دمشقیانو
ته او هم اورشلیمیانو ته او ټول ملک دَ یَهُودیي پوري او غیر قومونو ته مِ
خبر ورکړ چه توبه دِ وکړِي او الله ته دِ رجوع وکړِي او دَ توبي لایق عملونه
٢١ دِ وکړِي ٢١ دي دَپارَ یهُودیانو زه په هیکل کښ ونیولم او په قتلولو مِ

سر شول ۲۲ مگر له الله نه مِ مدد بياموند تر نن ورځي پوري ۲۲
ودريږم ووړوکي او لوي ته شاهدي لګم او هيڅ نه وايم بي له هغه نه
چه انبياؤ او موسیٰ ويلي دِي چه ضرور دِي چه و به شِي ۲۳ چه ۲۳
څرنګ مسيح به درد وزغمي او څرنګ اوّل دَ مړو دَ قيامت په سبَب به
اُمّت ته او غير قومونو ته دَ نوُر وعظ وکړي
۲۴ او چه لا ده په دي خبرو خپل عذر کاوه نو فِستُس ۲۴
په لوړ آواز وويل چه ته اي پَولُس ليوني يي او ډيرو کتابونو ليونتوب
ته اړولي يي ۲۵ ده ور ته ووِ اي فِستُس بهادره ليوني نه يم بلکه ۲۵
دَ رښتينيِ او دَ تميز خبري کوم ۲۶ ځکه چه هغه بادشاه چه ده ته ۲۶
په زړورتوب سره خبري کوم په دي څيزونو عالم دَي ځکه چه خما
يقين دي چه يو شَي به له دغو په ده پټ نه وِي ځکه چه دا څيز
په کونبه کښ شوي نه وه ۲۷ اي اګرپّا بادشاه ګنړه ته په انبياؤ ايمان ۲۷
راوړي څه ؟ پوهيږم چه ايمان راوړي ۲۸ او اګرپّا پَولُس ته ووِ چه ۲۸
ته مِ په لږ څه راضِي کوي چه زه مسيحِي شم ۲۹ پَولُس ووِ چه زه ۲۹
الله ته دُعا کوم په لږ څه يا په ډير نه يواځي ته بلکه دا ټول هم
چه نن ورځ مِ خبري اوري داسي شِي لکه چه زه بي له دي
بندونو
۳۰ نو بادشاِه او حاکم او برنيکي او نور چه ور سره کښيناستونکِي ۳۰
وُو پاڅيدل ۳۱ او يو له بله ئي خبري کولي او ويل ئي چه دا سړي هيڅ دَ ۳۱
مرګ يا دَ بندونو لايق کار نه کوِي ۳۲ او اګرِپّا فِستُس ته ووِ چه ۳۲
که دي سړِي رفعه دَدعوي قيصر ته کړي نه وي نو ممکن وُو چه
خلاص شوي وي +

## اووه ويشتم باب

۱ او چه مقرره شوه چه مونږ ايطاليي ته لاهو شو نو پَولُس او څو ۱
نور بنديان ئي يو صوبدار دَ اګسطُسِ دَ پلټني ته چه نوم ئي يُوليُوس

۲ دِه وسپارل ۲ نو مونږ یوَ جهاز اَدْرامِیتِیني چه دَ آسیا بندرونو ته لاهو
کیدوني وه وختو لنگر مو پورته کړ او اَرِسْتَرخُس مَکْدُونِيَ له تَسْلُونِکِي
۳ له مونږ سره وه ۳ او په بله ورځ صیدا ته ورکوز شُو او یُولِیُوس له
پَوْلُس سره مهربانِي کوله اجازت ئِي ورکړ چه خپلو دوستانو ته دِ
۴ لاړ شِي چه له هغو نه آرام ومومِي ۴ بیا له هغه ځاي نه مو لنگر
پورته کړ دَ قُپْرُس دَ لاندِ لاهو تیر شولو ځکه چه بادونه مخالف وُو
۵ ۵ او چه له هغه دریاب نه چه په جانب دَ کِلِیکِیي او دَ پَمفِیلِیي دي
۶ لاهو تیر شولو مَیْرا دَ لِیکِیي ته ورسیدلُو ۶ په هغه ځاي کښ صوبدار
دَ اسکندرِیي جهاز بیاموند چه اَیطالِیي ته لاهو کیدونِي وه او مونږ ئِي
۷ هغه ته وخیژولُو ۷ او چه ډیري ورځي په ورو ورو تللُو په گرانه سره
قَنِیدُس ته ورسیدلو او چه باد نه پرِیښودلو نو دَ کرِیت دَ لاندِ سَلمُونِي
۸ ته نژدي لاهُوشولو ۸ او چه له هغه ځايَ په مشکل سره لاهو تیر شولُو
هغه ځاي ته چه ښایسته بندرونه ور ته وايِي چه دَ لَسایِي ښهر ته
نژدي دَي ورسیدلُو
۹ ۹ او چه ډیره موده تیره شوه او په دریاب کښ سفر خطرناک شه
۱۰ ځکه چه روژه هم اوس تیره شوه نو پَوْلُس هغوي وویرول ۱۰ وئِي ویل
چه اي سړو زه وینم چه په دي سفر کښ البته ډیر ضرر او نقصان
۱۱ به وشِي نه تش دَ بار او دَ جهاز بلکه ځمونږ دَ ځانونو هم ۱۱ لیکن
صوبدار دَ ماڼرِکي او دَ خاوند دَ جهاز له هغي خبرو نه چه ده ته پَوْلُس
۱۲ وِیلي وي زیاتي منل ۱۲ او چه بندر ښه ځاي نه وه چه ژمي په کښ
تیر کړِي نو دَ اکثرو داسي مصلحت وشه چه له هغه ځاي نه لنگر پورته
کړِي که چرِي ممکن وِي چه فِنِیکَس ته ورسیږي او ژمي هلته کښ تیر
کړِي چه هغه دَ کرِیت بندر دي مخامخ دَ مغربي جنوبِي او مغربِي شمالِي
۱۳ ۱۳ او چه جنوبِي باد والوت نو هغوي گمان وکړ چه په خپل مقصود
ورسیدلو نو هغوي لنگر پورته کړ او دَ کرِیت په ډېره غاړي ته ډیر

نژدي تير شول ۱۴ ليکن پس له لږ ساعت نه طوفاني باد چه دَ هغه ۱۴
يُوراقِيلون نُومږي وه ورباندِ والوت ۱۵ اوچه جهاز ونيولي شه او نه توانيده ۱۵
چه باد ته مخامخ شي نو مو وسپاره مونږ يوړلي شو ۱۶ نو دَ يوي ۱۶
جزيري لاندِ چه نُوم ئي کَودَه وه لاهو شولو او په سختئ سره وتوانيدلو چه
بيړئ مو په لاس راوسته ۱۷ او چه دا ئي پورته کړه نو دَ مدد وَاکي ئي ۱۷
استعمال کړي او مينځ دَ جهاز دَ لاندِ ئي وتاړه اوچه ويريدل چه په
سيرتِس کښ به پريوزي اسباب ئي ښکته راوړ او داسي وړلي شول ۱۸ او ۱۸
چه مونږ په ډير طوفان کښ وُو نو صبا ئي بار وغورزاوه ۱۹ او په دريمه ۱۹
ورځ مو اسباب دَ جهاز په خپلو لاسونو وغورزاوه ۲۰ او چه ترډيرو ورځو ۲۰
نمر او ستوري ښکاره نه شول او طوفان هم راباندِ لږ نه وه نو په
اخِره ټول اميد دَ خلاصيدلو رانه واخستلي شه ۲۱ او پس له ډيري فاقي ۲۱
پَولُس دَ هغو په مينځ کښ ودريده و ئي ويل اي سړو بايده وه چه ځما
مو منلي وه او له کريت نه لاهو شوي نه وي تا چه له دي زيانَ او له نقصانَ
خلاص شوي وي ۲۲ او اوس زه تاسي ته تسلي درکوم چه ډاډه اوسئ چه ۲۲
هيڅ ضرر به ستاسي دَ يوه دَ ځان و نه شي مګر دَ جهاز ۲۳ ځکه چه ۲۳
په دي شپه کښ فرښته دَ الله چه زه دَ هغه يم او زه ئي عبادت کوم
ما ته ودريده ۲۴ و ئي ويل اي پَولُسَ مه ويريږه چه تا ته بايده دي چه دَ قيصر ۲۴
دَ وړاندِ ودريږي اوګوره چه الله هغه ټول مسافران چه له تا سره دي تا ته
بخښلي دي ۲۵ دي دَپارَ اي سړو ډاډه اوسئ ځکه چه زه په الله ايمان ۲۵
لرم چه داسي به وشي لکه چه ما ته ويلي شوي دي ۲۶ ليکن بايده دي چه ۲۶
مونږ په يوه جزيره کښ واچولي شو

۲۷ او چه څورلسمه شپه شوه او مونږ دَ ادَرَيَاه په درياب کښ يوَ ۲۷
خوا بل خوا زغلوي شو په نيمه شپه مانړاکانو ګمان کاوه چه کومي وچي
نژدي کيږو ۲۸ نو پاياو ئي معلوم کړ شل وازي ئي وموند او پس له لږي ۲۸
مُدي نه ئي بيا پاياو معلوم کړ پنځلس وازي ئي بياموند ۲۹ او چه وويريدل ۲۹

هسي نه چه دَ کمتو په ځايونو کښې پريوزو نو دَ بيړۍ له ورستو ني څلور
٣٠ لنگرونه واچول او اَرزو ني کوله چه ورځ شي ٣٠ ليکن چه مانړاکانو دَ
جهاز نه دَ تښتيدلو قصد وکړ او بيړۍ ني په درياب کښې واچوله په
٣١ دي بهانې چه لنگرونه دَ جهاز وړاندِ راکاږي ٣١ پَولُس صوبدار او سپاهيانو
ته وويل چه که دغه په جهاز کښې پاتي نه شي نو تاسي نه توانيږۍ چه
٣٢ خلاص شئ ٣٢ پس سپاهيانو رسئ دَ بيړۍ پريکړي او پريښوي چه پريوځي
٣٣ ٣٣ او دَ ورځ دَ نژدي کيدلو پوري پَولُس ټولو ته سوال کاوه چه څه
خوراک وخوري او وني ويل چه دا ورځ څورلسمه ده چه انتظار کوئ او څه مو
٣٤ خوړلي نه دي هيڅ مو اخيستلي نه دي ٣٤ له دي سببَ زه تاسو ته التماس
کوم چه تاسي خوراک واخلئ ځکه چه دا به ستاسو دَ خلاصون دَ پاره
فائده‌مند وي ځکه چه له تاسو نه دَ هيڅ يوه دَ سر ويښته به زيان نه شي
٣٥ ٣٥ او چه داني وويل نو ډوډۍ ني واخسته دَ الله شکر ني دَ ټولو په
٣٦ مخ کښې وکړ او ماته ني کړه او په خوراک سر شه ٣٦ او هغوي ټول خوشحال
٣٧ شول او خوراک ئې هم واخسته ٣٧ او مونږ ټول په جهاز کښې دوه سوه
٣٨ شپږ اويا تنه وُو ٣٨ او چه په ډوډۍ ماړه شول نو جهاز ني سپک کړ غنم
٣٩ ني په درياب کښې اَچول ٣٩ او چه ورځ شوه نو هغه زمکه ني نه پيژاندله
ليکن يو خليج ئې وليد چه غاړه ئې لرله نو دوي مصلحت وکړ چه که ممکن
٤٠ وي جهاز هغه ته تيل وهي ٤٠ او چه لنگرونه ني پريکړل هغه ني هلته په
درياب کښې پريښول او بندونه دَ سکانو ني پرانټل او وړاندِني بادوان ني
٤١ دَ باد دَ پاره پرانت او غاړي ته لاړل ٤١ او چه په هغه ځاي چه دوه دريابونه
گډيږي پريوتل جهاز ئې په غاړه تيل واهه نو سر دَ هغه ونښت او نه خوځيده
٤٢ او ورستنه ئې له سختئ دَ موجونو برهم وخوړ ٤٢ او دَ سپاهيانو صلاح
٤٣ وه چه بنديان قتل کړي هسي نه چه کوم يو لامبو کړي او وتښتي ٤٣ ليکن
صوبدار چه دَ پَولُس دَ خلاصيدلو اراده لرله نو هغوي ئې له دي مصلحت
نه منع کړه وئې فرمايل چه هرڅوک چه لامبو وهلي شي خپل ځان دِ

۴۴ اول وغورزوي، او زمكي ته دِ ووځي ۴۴ او څيني په تختو او څيني په ټکړو
دَ جهاز او هم هسي شول چه ټول په سلامتئ سره زمكه ته خلاص شول٭

# اته ويشتم باب

۱ ۱ او چه خلاص شو نو پوه شُو چه هغي جزيري ته مُليطه وبلي شي
۲ ۲ او هغو ربريو له مونږ سره بي اندازه مهرباني وكړه ځكه چه دَ باران
چه وريده او دَ يخني دَپارَ ئي اور بل كړ او مونږ ټول ئي قبول كړو -
۳ ۳ نو چه پولُس يو كيډي دَ لرګو سره ټول كړ په اور ئي كيښودل له كرمي
۴ نه يو تور مار راووت په لاس پوري ئي ونښت ۴ چه ربريانو هغه ځناور
وليد چه په لاس ئي ځړند دي يو له بله ئي وويل چه بيشك دا سړي
خوني دي اګركه له درياب نه خلاص شه ليكن عدالت به ئي ژوندي پري نه
۵ ږدي ۵ نو هغه ځناور ئي اور ته وځانډه او هيڅ ضرر ئي و نه موند -
۶ ۶ او هغوي منتظر وُو چه و به پړسيږي يا ناڅاپه به مړ پريوزي او چه
ډير ئي ور ته وكتل او وئي ليد چه هيڅ ضرر ور و نه رسيد وګرزيدل
۷ و ئي ويل چه دا يو الله دي
۷ او په كيرچاپير دَ هغه ځاي دَ جزيري دَ رئيس چه پوبليوس
نوم ئي وه مُلک وه او هغه مونږ قبول كړو او دري ورځي ئي په مهرباني
۸ سره څمونږ ميلمستيا وكړه ۸ نو داسي وشول چه پلار دَ پوبليوس په
تبه او په نَس خوږي مبتلا پروت وه نو پولُس ورننه وت او دُعا ئي وكړه
۹ او لاسونه ئي پري كيښودل او شفا ئي وركړه ۹ او چه دا وشه نو هغه نور
۱۰ رنځوران چه په جزيري كښ وُو راتله شفا ئي موندله ۱۰ نو هغو مونږ ته
په ډيرو عزّتونو سره عزّت راكړ او چه لنګر مو پورته كړ نو هغه چه
را ته په كار وُو را و ئي خيژول
۱۱ ۱۱ او پس له دريو مياشتو مونږ دَ اَسكندريي په جهاز كښ لاهو
۱۲ شولُو چه نخښي دَ جوړا ئي لرلي او ژمي ئي په جزيري كښ تير كړي وه ۱۲ نو
۱۳ مونږ په سَراكوس كښ كوز شُو دري ورځي پاتي شُو ۱۳ او له هغه ځاي

نه مو دَوَر وکړه رِیګیُون ته ورسیدلو او پس له یوي ورځي جنوبي باد والوت
۱۴ دویمه ورځ پُوطِیئوُلِي ته راغلُو ۱۴ هلته کښں مو وروڼړه بیاموندل نو موږ ته
ئي التماس وکړ چه اووه ورځي ورځنه پاتي شُو او په دي شان روما ته
۱۵ راغلُو ۱۵ او له هغه ځاي نه چه وروڼړو ځموږ خبر واوریده ځموږ دَ
استقبال دَپارَ را ووتل تر بازاره دَ اَپِیُوس او تر دریو سرایو پوري او چه
۱۶ پَولُس هغوي ولیدل شکر دَ الله ئي وکړ او ډاډه شه ۱۶ او چه په روما
کښں داخل شولو نو صوبدار بندیان دَ لښکر سردار ته وسپارل لیکن
پَولُس ته اذن وشه چه یواځي دِ له هغه سپاهِي سره چه دَده ساتنه
ئي کوله اوسِي
۱۷ ۱۷ او پس له دریو ورځو پَولُس هغوي چه بزرګان دَ یَهُودیانو وُو
وبلل او چه جمع شول هغوي ته ئي وویل چه اي سړو وروڼړو سره له
دي چه ما هیڅ شي مخالف دَ قوم او دَ دستورونو دَ پلرونو کړي نه دي له
۱۸ اورشلیم نه بندِي په لاسونو دَ رومانیانو کښں وسپارلي شوم ۱۸ هغوي چه
ځما تحقیق وکړ ځما دَ پرېښولو اراده ئي وکړه ځکه چه په ما کښں ئي هیڅ
۱۹ سبب دَ مرګ بیانه موند ۱۹ لیکن چه یَهُودیانو مخالفت وکړ نو لاچار شوم
چه رفعه دَ دعوي قیصر ته وکړم نه داچه په خپل قوم دَ څه شکایت
۲۰ وکړم ۲۰ نو دي دَپارَ مِ تاسو طلب کړيُ چه ومو وینم او خبري درسره
وکړم ځکه چه په جهت دَامید دَ اسرائیلو په دي زنځیر تړلي شوي یم -
۲۱ ۲۱ نو هغو ده ته ووِچه موږ ستا په حق کښں هیڅ لیکلي له یَهُودیه نه موندلِي
نه دِي او نه څوک له وروڼړو دَ هغه ځاي نه راغلِي دِي چه بده خبره یا
۲۲ ویل ئي له تا نه کړِي دِي ۲۲ لیکن موږ غوره ګڼړو چه له تا نه واورو چه
څه فکر کوي ځکه چه موږ ته معلوم دِي چه په هر ځاي کښں له دي فرقي نه
مخالف ویلي کیږِي
۲۳ ۲۳ نو هغوي ده ته یَوه ورځ مقرره کړه نو ډیر ده ځنه دَده مکان
ته راغلل چه دَ هغوي دَپارَ په بادشاهيُ دَ الله دَ شاهدي شرحه کوله

او له توریت دَ مُوسیٰ او له انبیاؤ نه له صباح نه تر مَبْگاه پورې دَ یسوع
۲۳ په حق کښې دليلونه راوړل ۲۴ نو څينو کلام ومانه او څينو ايمان رانه وړ ۲۴
۲۵ او چه يو له بل نه متفق نه شول نو وګرزيدل پس له دغه چه پَولُس ۲۵
دا يوه خبره وکړه چه رُوحُ الْقُدُس په واسطه دَ اَشْعِيَا نَبِي ستاسو پلرونو
ته ښه ويلي دِي ۲۶ و ئې ويل چه ۲۶
دې اُمَّتْ له ورشه ورته ووايه
چه به اوريدلو اورئِ او نه به پوهيږئِ
او به کتلو به ګورئِ و به نه وينئِ
۲۷ ځکه چه زړه دَدې اُمَّت غټ شوې دَي ۲۷
او غوږونه ئې له اوريدلو نه درانه شوي دِي
او سترګې خپلې ئې پټې کړې دِي
هسې نه چه په سترګو ووينې
او په غوږونو واورې
او په زړونو پوه شِي
او رجوع وکړي
او زه شفا ورکړم
۲۸ نو تاسي ته دِ معلوم وِي چه نجات دَ الله نورو قومونو ته استولې کيږي ۲۸
او هغوي به واورِي
۲۹ چه دا ئې وويل يَهُوديان لاړل او يَو له بله ئې ډيره مباحثه کوله ۲۹
۳۰ ليکن پَولُس دوه کاله پوره په خپل کرايه کړي کور کښې اوسيده او ۳۰
هغه ټول چه ده ته به ورتلل هغه به ئې قبول کول ۳۱ او په بادشاهي ۳۱
دَ الله ئې وعظ کاوه او په کامل زړورتوب ئې دَ خداوند يسوع مسيح
په خبره بې له منع کولو تعليم ورکاوه ❊

# خط دَ پولس رسول رومیانو ته

## اوّل باب

۱ ۱ پولس غلام دَ یسوع مسیح بللیَ شوي رسول او بیل کړي شوي وانجیل
۲ دَ الله ته ۲ هغه چه ده ئي وعده دَ خپلو نبیانو په وسیلي په پاکو صحیفو کښ
۳ وړنبئ کړي ده ۳ دَ خپل زوي په باب چه دَ جُثي له جهته له اولاده دَ
۴ داؤد نه پیدا شه ۴ او په سبب دَ روح دَ قدّوسیّت له مړیو نه دَ ژوندي
پاڅیدلو په قدرت سره دَ الله زوي معیّن شه یسوع مسیح خداوند
۵ څمونږ ۵ هغه چه دَ ده دَ نُوم په وسیلي مونږ فضل او رسالت بیاموند
۶ دَ یارَ دَ تابعداريِ دَ ایمان په ټولو قومونو کښ ۶ چه له هغو نه تاسو
۷ هم بللي شوي دَ یسوع مسیح یئ ۷ هغو ټولو ته چه په روم کښ محبوبان
دَ الله او بللي شوي مقدّسان دي فضل او سلامتیا دِ څمونږ له الله
پلار نه او له خداوند یسوع مسیح نه په تاسو وي
۸ ۸ اوّل زه په وسیلي دَ یسوع مسیح ستاسو دَ ټولو دَ یارَ دَ خپل اَلله شکر
۹ کوم چه ستاسي ایمان په ټول عالم کښ مشهور کړي شوي دي ۹ ځکه
هغه الله چه زه ئي په خپل روح سره دَ ده دَ زوي په انجیل کښ عبادت
۱۰ کوم ځما شاهد دي چه زه مو څرنګ مدام یادوم ۱۰ په خپلو دعاؤ کښ غواړم
۱۱ چه دَ الله په مرضي به اوس کامیاب شم چه تاسي له درشم ۱۱ ځکه چه
زه ستاسي دَ لیدلو آرزومند یم تاچه تاسو ته څه روحاني نعمت درکړم
۱۲ چه مضبوط کړي شئ ۱۲ چه زه به له تاسي سره په تاسي کښ تسلي وموم
۱۳ یو دَ بل په ایمان سره ستاسو ایمان او ځما ایمان ۱۳ لیکن اي وروڼو
زه نه غواړم چه تاسي په دي ناخبر شئ چه ما ډیرځله اراده دَ درتلو وکړه
مګر لا تر اوسه پوري معطّل شوم چه ستاسي په مینځ کښ هم څه میوه
۱۴ حاصله کړم لکه چه په نورو قومونو کښ ۱۴ ځکه چه زه دَ یونانیانو او

۱۵ دَ بربریانو دَ دانایانو او دَ نادانانو قرضدار یم ۱۵ نو زه تاسو ته چه په روم
۱۶ کښ یئ په خپل وَس سره هم تیار یم چه زیري درکړم ۱۶ ځکه چه زه
دَ مسیح په انجیل نه شرمیږم ولي چه دغه قدرت دَ الله دي دَ هر یوه دَ
۱۷ نجات دَپارَ چه ایمان راوړي اوّل دَ یهودیانو بیا دَ یونانیانو ۱۷ ځکه چه
صداقت دَ الله په دغه کښ ظاهر دَي له ایمانه تر ایمانه لکه چه لیکلي دِي
چه صادق به په ایمان سره ژوندي وِي
۱۸ ۱۸ ځکه چه غضب دَ الله په ټولي بي دِینئ او ناراستئ دَ آدمیانو له
۱۹ آسمانَ ښکاریږي چه حق په ناراستي کښ منع لري ۱۹ ځکه چه معرفت دَ
الله په دوي کښ ظاهریږي ولي چه دغه خو الله دوي ته ظاهر کړي دَي
۲۰ ۲۰ ځکه چه دَده نادیدني څیزونه یعني دَده ابدِي قدرت او الوهیت
له وقتَ دَ پیدائښتَ دَ عالم نه په مصنوعاتو لیدلي شِي تر دي چه دوي
۲۱ بيعذره شِي ۲۱ ځکه چه هغوي سره له دي چه الله ئې وپیژاند تمجید او
شکرگذاري ئې لایقَ دَ الله ونه کړله بلکه به خپلو خیالونو کښ احمقان شول
۲۲ او بي فهمَ زړه ئې تاریک شه ۲۲ او چه دوي وِګڼل چه مونږ دانایان یو احمقان
۲۳ شول ۲۳ او دَ باقِي الله جلال ئې دَ فانِي آدمزاد او دَ مرغانو او دَ چارپایانو
او دَ ښځندونکو په صورت بدل کړ
۲۴ ۲۴ دي دَپارَ الله هم هغوي دَ خپلو زړونو په شهوتونو کښ ناپاکئ
۲۵ ته وسپارل چه جُسي خپلي ئې په خپل مینځ کښ بيحرمتَ کړي ۲۵ ځکه
چه هغوي حق دَ الله په دروغو بدل کړ او دَ مخلوق عبادت او خدمت
ئې زیات له هغه خالق نه وکړ چه تر ابده پوري مبارک دَي آمین
۲۶ ۲۶ له دي سببَ الله هغوي دَ بيحرمتئ شهوتونو ته وسپارل ځکه چه
۲۷ دَ دوي ښځو طبعي عادتونه په غیرطبعي بدل کړل ۲۷ او په دي شان ئې
نارینهٔ هم طبعي استعمال دَ ښځو پرېښود په خپل شهوت کښ یو تر بله
وِسول چه نارینه له نارینه سره مخ توري کوونکي شول او دَ خپلي گمراهئ اجر ئې
۲۸ په خپلو ځانونو کښ لایق ومونډ ۲۸ او لکه چه دوي غوره ونه ګڼله

چه الله په معرفت خپل کښې ولري نو الله هم دوي دَ عقل بې تمیزئ ته و
سپارل چه نالایق کارونه کوي ۲۹ ډک شوي له ټولې ناراستئ اوله شرارت ۲۹
او له حرص او له بدئ نه ډک شوي له حسدَ له قتلَ له جګړي له ټګئ
او له بدخوئ نه ۳۰ چغلخوران تهمت لګونکي له الله نه نفرتیان مغروران ۳۰
کبرجنان لاف‌زنان جوړونکي دَ شرونو دَ مور دَ پلار نافرمان ۳۱ بې‌عقلان ۳۱
بې‌وعدې بې‌الفتَ او بې‌رحمَ ۳۲ هغوي چه په حکم دَ الله پوهیدونکي ۳۲
شول چه دَ داسې کارکونکي دَ مرګ لایق دي نو دوي نه تش هغه کوي
بلکه استعمال کونکي دَ دي کارونو هم خوښوي ✠ .

## دویم باب

۱ پس اي سړیه ته چه حکم کوي چه هرڅوک چه یې بې‌عذره یې څکه ۱
چه په هغه څه چه ته په بل حکم کوي په خپل ځان فتوی ورکوي څکه
چه ته چه حکم کونکي یې بعینه هم هغه کارونه کوي ۲ او مونږ پوهیږو ۲
چه حکم دَ الله په داسې کارکونکیو باندې برحق دي ۳ کنږه ته داسې ګمان ۳
کوي اي سړیه چه په داسې کارکونکو باندې حکم کوي او په خپله هم هغه
کارونه کوي چه له عدالتَ دَ الله نه به خلاص شي څه ؟ ۴ یا ته دَ ده دَ ۴
مهربانئ او دَ حلم او دَ سهیدلو دولت سپک کنړې څه ؟ او ته نه پوهیږې
چه مهر دَ الله دِ توبې ته وربولي ۵ بلکه په سبب دَ سختئ اودَناتوبه‌کا ۵
زړه سره دَ غضب په ورځ او په ظاهریدلو دَ حق عدالت دَ الله دَ ځان
دَپارَ غضب ذخیره کوي ۶ او چه هر یوه ته به دَ ده دَ عملونو په موافق ۶
جزا ورکړي ۷ هغوي ته چه په صبر سره دَ نیک کار په عمل کښې جلال ۷
او عزت او بقا لټوي ابدي ژوندون ۸ مګر په هغو باندې چه مفسدان ۸
دي او دَ حق تابعداري نه کوي بلکه دَ ناراستئ تابعداري کوي قهراوغضب
۹ عذاب اوتنګي په هر روح دَ بشر باندې چه بدي کوي اوّل دَ یهودي ۹
بیا دَ یوناني ۱۰ لیکن جلال اوعزت او سلامتي ټولو ته چه نیکي کوي اوّل یهودي ۱۰
بیا یوناني ته

۱۱ ۱۲ ۱۱ ځکه چه الله څخه طرفداري نشته ۱۲ ځکه هغوي چه بي شرعي ئ
خطا وکړه بي شرعي به هلاک شي او هغوي چه په شرعي کښ خطا وکړه په
۱۳ شرعي سره به حکم پري وشي ۱۳ ځکه چه اوريدونکي دَ شرعي په نزد دَ
الله صادقان نه دِي بلکه هغوي چه په شرعي عمل کوي صادقان به وګڼلي شي
۱۴ ۱۴ هر کله چه هغه غير قومونه چه شرع نه لري او دَ شرعي کارونه په طبعه
۱۵ سره کوي نو دوي چه شرع نه لري دَ ځان دَپارَه په خپله شرع دِي ۱۵ ځکه
چه دوي دَ شرعي کارونه په زړونو خپلو ليکلي ښکاره کوي دَ هغو تميز هم
شاهدي ورکوي او خيالونه ئ په خپل مينځ کښ شکايت کوونکي يا عذر کوونکي
۱۶ وِي ۱۶ په هغې ورځې چه الله به دَ سړيو دَ رازونو عدالت کوي ځما دَ انجيل
په موافق په وسيلي دَ يسوع مسيح
۱۷ ۱۷ ليکن که ته مسمّیٰ په يهودي يي او په توريت توکّل کوی او په الله فخر
۱۸ کوي ۱۸ او دَده اراده پيژني او بهتر څيزونه غوره کوي په تعليم موندلو دَ
۱۹ توريت ۱۹ او يقين کوي چه زه دَ ړندو رهنماي يم او دَ هغو چه په تياري
۲۰ کښ دِي نور يم ۲۰ دَ جاهلانو تنبيه کوونکي او دَ ماشومانو معلّم او چه صورت
۲۱ دَ علم او حق په توريت کښ لري ۲۱ پس ته چه نورو ته ښوونه کوي خپل
ځان ته ښوونه نه کوي څه؟ ته چه نصيحت کوي چه غلا مه کوه نو ته غلا
۲۲ کوي څه؟ ۲۲ ته چه وايي چه زنا مه کوه نو ته زنا کوي څه؟ ته چه له بتانو نه
۲۳ نفرت کوي هيکل لوټوي څه؟ ۲۳ ته چه په توريت فخر کوي نو په تعدیٰ دَ
۲۴ توريت دَ الله بي عزّتي کوي ۲۴ ځکه چه ستاسو په سبب په غير قومونو کښ دَ
۲۵ الله دَ نوم تکفير کيږي لکه چه ليکلي شوي دِي ۲۵ ختنه خو فائده لري که ته
په توريت عمل کوي ليکن که ته له توريت نه مخالفت کوي نو ستا ختنه ناختنه
۲۶ وګڼلي شوه ۲۶ پس چه نامختون دَ توريت حکمونه ساتي نو دَده ناختنه به ختنه
۲۷ و نه ګڼلي شي څه؟ ۲۷ او هغه طبعي نامختوني چه توريت پوره کوي نو په تا
به چه سره له لفظاً او له ختني له توريت مخالفت کوي حکم به و نه کړي
۲۸ څه؟ ۲۸ ځکه هغه يهودي نه دي چه په ظاهر کښ دَي او نه هغه ختنه

۲۹ ده چه په ظاهره په جسم کښ ده ۲۵ بلکه یهودِي هغه دي چه په پټه کښ
وِي او ختنه دَ زړه په روح کښ دَه نه په لفظ هغه چه صفت ئي نه له
انسانَ بلکه له الله دي *

# دریم باب

۱ ۲ ۱ پس ریاتوالي دَ یهودِي په څه دي یا فائده دَ ختنی څه ده ۲ له ټولو وجهو
۳ ډیره اوّل داچه دوي امانت‌دار شوِي په کلامُ الله سره ۳ نو څه وشول که
څني امانت‌داران نه شول نو کنړه دَ هغوي به ناامانت‌داري به امانت دَالله موقوف
۴ کړِي څه ؟ ۴ هسي دِ نه وِي مگر الله دِ رښتیني شِي او هر سړي دِ دروغژن
لکه چه لیکلي شوِي دِي چه

ته دِ په خپلو خبرو کښ صادق شي
او په خپل عدالت کولو کښ دِ غالب شي

۵ ۵ لیکن که څمونږ ناراستي دَ الله صداقت ښکاره کوِي نو مونږ به څه ووایُو
کنړه هغه الله چه قهر نازل کوِي ظالم دي څه ؟(زه دَ انسان په شان
۶ ۷ خبري کوم) ۶ هسي دِ نه وِي نو به څرنګ الله دَ عالم عدالت وکړِي ۷ بیا که
راستِي دَ الله څما په دروغو سره دَده دَجلال دَپارَ زیاته شِي نو ولي به ما باندِ
۸ دَخطاکار په شان حکم کیږِي ۸ او ولي نه وایُو(لکه چه په مونږ بُهتان
کیږِي او لکه څني وایِي چه مونږ وایُو) چه بدِي دِ وکړُو تاچه نیکي راشِي
فتویٰ په دوي برحقه ده

۹ ۱۰ ۹ نو بیا څه کنړه مونږ غوره یُو هرګز نه ۱۰ څکه چه مونږ دعویٰ وکړه چه
یهودیان او یونانیان ټول واړه دَخطا دَ لاندِ دِي لکه چه لیکلي شوِي دِي
چه

هیڅوک صادق نشته یَو هم نشته
هیڅوک پوهیدونکي نشته
۱۱ ۱۱ هیڅوک طالب دَ الله نشته
۱۲ ۱۲ ټول ګمراه شول ټول سره خراب شول

هیڅوک نیکوکار نشته یو هم نشته

۱۳ ۱۳ حلق دَ هغو واز قبر دي

او په خپلو ژبو سره يُ مکرونه کړي دِيُ

دَ تورو مارانو زهر دَدوي تر شونډو لاندِ دِي

۱۴ ۱۴ اوخولې يُ له لعنت او له ترخو ډکي دِي

۱۵ ۱۵ او پښي يُ وينو تويولو ته ګړندۍُ دِي

۱۶ ۱۶ هلاکت او آفت دَ دوي په لارو کښ دِي

۱۷ ۱۷ او دَ سلامتيا لار يُ و نه پيژاندله

۱۸ ۱۸ او ترس دَ الله يُ دَ سترګو دَ وړاندِ نشته

۱۹ ۱۹ او موږ پوهيږو چه هر هغه څه چه تورٰت وايِي هغه ته وايِي چه
په تورٰت کښ دِي تاچه هره خوله بنده شِي او ټول عالم دَ الله ترحکم لاندِ
۲۰ راوړلي شِي ۲۰ ځکه چه هيڅ بشر به دَ تورٰت په عملونو سره دَ الله په حضور
۲۱ صادق و نه ګڼلي شِي ځکه چه په تورٰت سره دَ خطا پيژندګلي ده ۲۱ مګر اوس
صداقت دَ الله بي تورٰت ښکاره شوی دَي چه شاهدِي پرِ کړي شوي ده له
۲۲ توريتَ او له انبياؤ ۲۲ يعني صداقت دَ الله دَ ايمان په وسيلي په يسوع
۲۳ مسيح ټولو ته چه ايمان راوړونکي دِي ولي چه هيڅ فرق نشته ۲۳ ځکه چه
۲۴ ټولو ګناه کړي ده او دَ الله له جلال نه پسته دِي ۲۴ او دَ ده په فضل
سره مُفت صادقان وګڼلي شِي دَ هغي فديي په وسيلي چه په يسوع مسيح
۲۵ کښ ده ۲۵ هغه چه الله کفارهٔ ښکاره کړي دَه په وسيلي دَ ايمان په وينو دَده
دَپارَ دَ ظاهرولو دَ صداقت خپل په سبب دَ تيريدلو له هغو خطاؤ چه وړاندِ
۲۶ کړي شوي وِي په صبر دَ الله سره ۲۶ دَپارَ دَ ظاهرولو دَ صداقت خپل په
دي حاضر وقت کښ تاچه دي صادق شِي او هغه چه په يسوع ايمان راوړِي
۲۷ صادق وګڼِي ۲۷ نو بيا فخر کوم ځرته؟ بيستلي شوي دَي په کوم شريعت سره
۲۸ دَ عملونو په شريعت نه بلکه دَ ايمان په شريعت سره ۲۸ نو موږ داګڼو
۲۹ چه سړي بي عملونو دَ شرعِي په ايمان سره صادق ګڼلي کيږِي ۲۹ نو الله فقط

دَ یهودیانو الله دَی څه؟ او دَ غیر قومونو هم نه؟ هو دَ غیر قومونو هم ۳۰ که ۳۰
داسي شي چه الله واحد دي او دي به مختون په ایمان کښ او نامختون به په
ایمان سره صادق وګرزوي ۳۱ نو ګنړه مونږ شریعت په ایمان سره باطل ۳۱
کُوو څه؟ هرګز نه بلکه شریعت قائم کوو ٭

# څلورم باب

۱ نو مونږ به څه ووایُو چه څمونږ پلار ابراهام دَ جُثي له سببَ څه موندلي ۱
دي ۲ څکه چه که ابراهام په عملونو سره صادق وګنړلي شه نو فخر لري لیکن نه ۲
دَ الله په نزد ۳ څکه چه کتاب څه وایي چه ابراهام په الله ایمان راوړ نو ۳
ده لره صداقت وګنړلي شه ۴ او کار کونکي لره مزدوري بخشش نه دي بلکه ۴
قرض ئې دي ۵ لیکن هغه لره چه کار نه کوي بلکه په هغه چا ایمان راوړي ۵
چه بي دینه صادق شمیري نو دَدغه ایمان ور ته صداقت ګنړلي شي ۶ لکه ۶
چه داوُد هم دَ هغه سړي په مبارکۍ کښ وایي چه الله ئې بي له عملونو نه
صادق شمیري ۷ مبارکي ده هغوي لره چه ګناهونه ئې وبخښلي شُو او ۷
خطاکاري ئې پټي کړي شوي
۸ مبارک هغه سړي دَي چه خداوند ئې ګناه و نه شمیري ۸
۹ نو دا مبارکي په مختونانو ده فقط یا په نامختونو هم چه مونږ وایُو ابراهام ۹
لره چه ایمان صداقت وګنړلي شه ۱۰ نو څرنګ وګنړلي شه دَ مختونۍ په حال ۱۰
کښ که په نامختونۍ کښ بلکه په نامختونۍ کښ ۱۱ او ده دَ ختني نخښه واخستله ۱۱
مُهر دَ هغه دَ صداقت دَ ایمان چه په نامختونۍ کښ ئې وه تاچه پلار
شي دَ هغو ټولو چه ایمان راوړي اګر که دوي په نامختونۍ کښ وي تاچه
دوي لره هم صداقت وګنړلي شي ۱۲ او پلار دَ نامختونو هغو لره چه نه ۱۲
تش دَ ختني دي بلکه چه څمونږ دَ پلار ابراهام دَ هغه ایمان په پلونو
چه په نامختونۍ کښ ئې لاره هم ځي ۱۳ څکه چه هغه وعده چه ته به ۱۳
دَدُنیا وارث شي له ابراهام یا دَده له اولاد سره دَ شریعت په وسیلي سره
و نه شوه بلکه دَ ایمان دَصداقت په سبب ۱۴ څکه چه که چري هغوي ۱۴

۱۵ چه دَ شرعي دِي وارثان شِي نو ايمان بي فائدي شه او وعده باطله شوه ۱۵ ځکه
چه شريعت دَ غضب کار کوِي ليکن هرچرته چه شريعت نشته تعدیٰ هم
۱۶ نشته ۱۶ دي دَپارَ له ايمانَ وشوه تاچه په فضل سره وِي او چه وعدٔه
دَ ټول اولاد دَپارَ ثابته شِي نه تش هغه ته چه دَ شريعت دي تش بلکه دَ
هغه دَپارَ هم چه دَ ابراهام له ايمانه دَي هغه چه څمونږ دَ ټولو پلار دي
۱۷ ۱۷ (لکه چه ليکلي شوِي دِي چه ته مِ دَ ډيرو قومونو پلار کړي يي) دَ هغه
الله دَ وړاندِ چه ده ايمان پرِ راوړي وه هغه چه مړيِ ژوندي کوِي او
۱۸ ناموجود څيزونه داسي بولي لکه چه موجود دِي ۱۸ هغه ځوک چه په خلاف دَ
اميد له اميد سره ايمان راوړ تا چه دَ ډيرو قومونو پلار شِي لکه چه وَلِي
۱۹ شوِي وُو چه ستا اولاد به هم داسي وِي ۱۹ اوچه دي په ايمان کښ ضعيف
نه وه نو په خپل صورت ئِ نظر نه کړ چه دَ مړِي په شان وه (ځکه چه دي
۲۰ سل کلني وه) او نه دَ ساري دَ رحِم چه مړاوي شوي وه ۲۰ او نه ئِ په بي‌ايمانئ
سرِ دَ الله په وعده کښ شک راوړ بلکه په ايمان سره قوِي وه الله لره
۲۱ تمجيد ورکونکي ۲۱ او ښه يقين ئِ لاره چه هرڅه چه ده وعده پرِ کړي دَه
۲۲ په کولو ئِ هم قادر دي دِي دَپارَ ورلرِ صداقت وګنړلي شه ۲۳ ليکن نه تش
۲۴ دَده دَپارَ ليکلي شوِي دِي چه دا ورته وګنړلي شه ۲۴ بلکه څمونږ دَپارَ
هم هغوي چه ورته ګنړلي شِي که چري مونږ ايمان راوړو په هغه چه يسوع
۲۵ خداوند څمونږ ئِ له مړو پاڅاوه ۲۵ هغه چه څمونږ دَ تقصيرونو دَپارَ
وسپارلي شه او څمونږ دَ صادقولو دَپارَ پاڅولي شه +

## پنځم باب

۱ ۱ نو هرکله چه مونږ په ايمان سره صادق وګنړلي شولو نو مونږ له الله
۲ سره سلام لرُو په وسيلي دَ يسوع مسيح خداوند څمونږ ۲ هغه چه دَده
په وسيلي مونږ په ايمان سره هغه فضل ته هم ننوتل ومونډل چه په کښ
۳ مقيم يُو او دَ الله دَجلال په اميد فخر کوُو ۳ او نه تش دا بلکه مونږ په
۴ تنګسو کښ هم فخر کوُو چه مونږ پوهيږُو چه تنګسيا صبر پيدا کوِي ۴ او صبر

لیاقت او لیاقت أمید ٥ او امید نه شرمنده کوِي ځکه چه محبت دَ الله ٥
څمونږ په زړونو کښ راتوي شوي دَي په وسیلي دَ روحُ القدس چه مونږ
ته راکړي شوي دَي ٦ ځکه هغه وقت چه مونږ ضعیف وُو مسیح په عین ٦
وقت کښ دَ بي دینانو دَپارَ مړ شه ٧ ځکه چه په مشکل سره به څوک ٧
دَ صادق دَپارَ ومري مګر ګوندِ چه څوک به دَ چا نیک سړي دَپارَ زړورتوب
وکړي و به مري ٨ لیکن الله خپل محبت په مونږ باندِ ظاهروِي لا تر اوسه ٨
چه مونږ ګناهګار وُو مسیح څمونږ دَپارَ مړ شه ٩ پس لا څومره زیات چه ٩
مونږ اوس دده په وینو سره صادقان وګنړلي شولو دَده په وسیلي به له
غضب نه خلاص شو ١٠ ځکه اګر که مونږ چه دښمنان وُو دَده دَ زوي ١٠
دَ مرګ په وسیلي له الله سره ملیا شولُو نو څومره زیات به مونږ ملیا شوي
دَده دَ ژوندون په وسیلي خلاص شُو ١١ او نه تش دا بلکه په الله هم فخر ١١
کُوو څمونږ دَ خداوند یسوع مسیح په وسیلي هغه چه دَده په سبب مو
ملاقات بیاموند

١٢ دي دَپارَ لکه چه دَ یوه سړي په وسیله سره خطا عالم ته راننوتله ١٢
او دَ خطا په سبب مرګ او دا رنګ مرګ په ټول انسان کښ خور شه ځکه
ټولو خطا وکړه ١٣ دي دَپارَ چه تر توریتَ پوري خطا په عالم کښ وه لیکن ١٣
خطا نه ګنړلي کیدله هرچرته چه شریعت نشته ١٤ لیکن مرګ له آدم نه ١٤
تر موسیٰ پوري بادشاهي وکړه په هغو باندِ چه دَ آدم دَ تعدیٰ په شان
ئي خطا ونه کړه هغه چه دَ هغه راتلونکي نمونه دَه ١٥ لیکن نه لکه خطا ١٥
هم هسي بخشش ځکه اګر که دَ یوه دَ تقصیر په سبب ډیر مړه شول نو
لا څومره زیات فضل دَ الله او هغه بخشش چه په فضل دَ یوه سړي
یسوع مسیح په ډیرو زیات خور شه ١٦ او نه لکه چه دَ یوه خطاکار سره ١٦
هسي بخشش دَي ځکه چه فتویٰ خو له یوه نه په عدالت کښ وشوه لیکن
بخشش دَ ډیرو تقصیرونو دَ صادقولو دَپارَ ١٧ ځکه چه که دَ یوه سړي دَ ١٧
تقصیر په سبب مرګ بادشاهي وکړه نو لا ډیر زیات هغوي چه زیاتوالي

دَ فضل او بخشش دَ صداقت بیاموږي په ژوندانه کښ. به بادشاهي وکړي
۱۸ په یو سړه یعني دَ یسوع مسیح په وسیلي سره ۱۸ نو هرکله لکه چه دَ یوه
دَ تقصیر په سبب په ټولو سړیو دَ عدالت حکم وشه هم هسي دَ یوه
صدقِ عمل په سبب ټول انسان ته بخشش وشه دَپارَ دَ صادقولو دَ
۱۹ ژوندانه ۱۹ لکه چه دَ یوه سړي دَ نافرمانۍ په سبب ډیر خطاکاران شول
۲۰ هم هسي به دَ یوه دَ تابعدارۍ په سبب ډیر صادقان وګرزولي شي ۲۰ لیکن
شریعت راننووت تاچه تقصیر ډیر شي لیکن هغه ځاي چه خطا زیاته شوه
فضل لا ډیر زیات شه تا لکه چه خطا په هغه مرګ کښ بادشاهي وکړه
هم هسي به فضل بادشاهي وکړي په صداقت سره دَ ابدي ژوندانه دَپارَ په
وسیلي دَ یسوع مسیح خداوند ځمونږ ✣

# شپږم باب

۱ ۱ نو مونږ څه ووایو ګنړه په خطا کښ دِ پاتي شُو تاچه فضل ډیر شي۔
۲ ۲ دادِ نه وِي مونږ هغه یُو چه خطا ته مړه شولو نو بیا به څرنګ په
۳ هغي کښ ژوند وکړو ۳ یاګنړه تاسو نه پوهیږئ چه هر یو له مونږ نه
چه په یسوع مسیح کښ بپتسما ومونده دَده په مرګ کښ مو بپتسما
۴ ومونده ۴ نو مونږ له ده سره ښخ شولو .دَ بپتسما په سبب دَده
ومرګ ته تا لکه چه مسیح دَ پلار دَجلال په وسیلي له مړیو پورته کړي
۵ شه هم هسي مونږ په نوِي ژوندانه کښ وګرزیږو ۵ ځکه هرکله چه مونږ
دَده دَ مرګ په نموني کښ ورسره همتا شولو نو به دَده دَ قیامت په نموني
۶ کښ هم ورسره شُو ۶ ځکه چه مونږ پوهیدونکي یو چه ځمونږ زوړ انسان
له ده سره په صلیب شه تاچه دَ خطا جُسّه نابوده شي چه دَ خطا غلامي
۷ ۸ بیا ونه کړو ۷ ځکه هغه چه مړ شه له خطا صادق وګنړلي شه ۸ نو که مونږ
له مسیح سره مړه شولو نو مونږ ایمان راوړو چه له ده سره به ژوندي هم
۹ شُو ۹ مونږ پوهیږُو چه مسیح چه له مړیو پورته کړي ،شوي دي بیا به مړ
۱۰ نه شي مرګ به په ده هرګز خاوندي ونه کړي ۱۰ ځکه هغه مرګ چه مړي

مړ شه خطا ته یو وار مړ شه او هغه ژوندون چه پرِ ژوندي شه الله
11 لره ژوندي دي ١١ هم هسي تاسي خپل ځانونه خطا ته مړه وګڼئ او الله
ته ژوندي په یسوع مسیح کښ
12 ١٢ پس خطا دِ ستاسي په فاني جُثي کښ سلطنت و نه کړي تا
13 چه دَ هغي په شهوتونو کښ تابعداري وکړئ ١٣ او خپل اندامونه مه وړاندِ
کوئ چه خطا لره وسله دَ ناراستئ شي بلکه خپل ځانونه الله ته وړاندِ
کړئ لکه چه له مړیو نه ژوندي یئ او اندامونه ستاسي وسله دَصداقت
14 الله لره ١٤ ځکه چه خطا به په تاسي باندِ خاوندي و نه کړي ځکه چه تاسي
دَ شریعت دَ لاندِ نه یئ بلکه تر فضل لاندِ
15 ١٥ نو څه ګنړه مونږ به ګناه وکړو څه ؟ ځکه چه تر شریعت دَ لاندِ
16 نه یو بلکه تر فضل لاندِ دا دِ و نه شي ١٦ ګنړه تاسي نه پوهیږئ چه هغه چه
تابعداري ته یې خپل ځانونه دَ مریونو په شان پیش کوئ هغه لره مریونه
یئ چه تابعداري یې کوئ یا خو خطا لره په مرګ کښ یا دَ تابعداري په صداقت
17 کښ ١٧ نو شکر الله ته که هرڅو چه تاسي دَ خطا مریونه وئ اوس خو له
زړه دَ هغه تعلیم او نموني ته تابعدار شوئ چه تاسي ور وسپارلي شوئ
18 19 ١٨ او تاسي له ګناه نه آزاد شوي دَ صداقت مریونه شوي یئ ١٩ ستاسي
دَ جُثي دَ ضعیفئ په سبب انساني خبري کوم لکه چه تاسي خپل اندامونه
ناپاکئ ته او په بي شرعئ کښ بي شرعئ ته په شان دَ غلامانو پیش کړل
هم هسي اوس خپل اندامونه په قدوسیّت کښ صداقت ته په شان دَ
20 غلامانو پیش کړئ ٢٠ ځکه هغه وقت چه تاسي دَ ګناه مریونه وئ له
21 صداقت نه آزاد وئ ٢١ پس تاسي په هغه وقت کښ له هغو څیزونو څه میوه
22 لرله چه اوس ورنه شرمیږئ ځکه چه آخر دَ دغو څیزونو مرګ دي ٢٢ مګر
اوس چه له خطا نه آزاد کړي شوئ او دَ الله مریونه شوئ نو تاسي خپله میوه
23 په قدوسیّت کښ لرئ او آخر ابدي ژوندون دي ٢٣ ځکه چه مزدوري دَ خطا
مرګ دي لیکن بخشش دَ الله ابدي ژوندون دي په یسوع مسیح خداوند څمونږ کښ

# اوم باب

۱ ۱ تاسي نه پوهيږئ اي وروڼو زه دَ شريعت عالمانو ته وايم ترڅو پوري
۲ چه سړي ژوندي وِي شريعت خاوندِي پرِ کوِي ۲ ځکه هغه ښځه چه ترسړي
لاندِ ده په شريعت کښ په ژوندِي سړي تړلِي دَه ليکن چه سړي مړشي نو دَ
۳ سړِي له شريعتَ آزاده ده ۳ نو ترهغه پوري چه سړي ئي ژوندي وِي زانِيَ
بللي کيږِي که دَ بل سړِي سره شِي ليکن چه سړي ئي مړشِي نودا له شرعِي
۴ نه ازاده دَه نودغه زانيه نه شوه که دبل سړِي سره وشي ۴ له دي سببَ اي زما وروڼو تاسو
هم دَ مسيح دَجُثي په سبب شريعت ته مړه شوِي يئِ تاچه تاسي دَ بل
سره شئِ هغه لره چه له مړيو پورته شوي وه تاچه مونږ الله له ميوه
۵ راوړو ۵ ځکه هرکله چه مونږ په جُثي کښ وُو نو خواهشونه دَهغوخطاؤ
چه دَ شريعت په سبب ئي ځمونږ په اندامونو کښ عمل کاوه تاچه مونږ
۶ مرګ لره ميوه راوړُو ۶ ليکن اوس چه مونږ مړه شولو نو له هغي شرعِي
نه چه په کښ بند شوِي وُو آزاد شوِي يُو تاچه مونږ دَ روح په تازګِي
کښ غلامِي وکړُو اونه دَحرفونو په زوړوالِي
۷ ۷ پس مونږ به څه ووايُو ګنړه هغه شريعت ګناه دَه هسي دِ نه وِي
بلکه هغه خطا مِ ونه پيژاندله بي دَ شرعِي په سبب ځکه چه ما به حرص
۸ پيژاندلي نه وه که شريعت ويلِي نه وي چه حرص مه کوه ۸ ليکن خطا په
حکم سره قابو واخست په ماکښ ئي هر قسم حرص پيدا کړ ځکه چه له شرعِي
۹ نه خطا مړه ده ۹ او زه وړاندِ بي له شرعِي ژوندي وم ليکن دَحکم په
۱۰ راتلو سره خطا ژوندئِ شوه او زه مړ شوم ۱۰ او هغه حکم چه دَ ژوندون
۱۱ دَپارَ وه هم هغه دَ مرګ دَپارَ وموند شه ۱۱ ځکه چه خطا په حکم سره
۱۲ قابو واخست زه ئي وغولولم او دَ هغه په سبب ئي قتل کړلم ۱۲ نو شريعت
مُقَدَّس دي اوعادل او نيک دي نو ګنړه هغه نيک شَي زما دَپارَ مرګ
۱۳ شه څه؟ ۱۳ هسي دِ نه وِي بلکه خطا تاچه خطا ښکاره شِي چه دغه دَ

نیک څیز په وسیلي ما لره دَ مرګ عمل کونکي شه تا چه خطا دَ حکم په وسیلي
۱۴ ډیره بده خطا ښکاره شي ۱۴ ځکه چه پوهیږو چه شریعت روحاني دَي لیکن
۱۵ زه جسماني یم تر خطا لاندِ خرڅ کړي شوي ۱۵ ولي هغه چه زه ئې عمل کوم
نه پرِ پوهیږم ځکه چه نه کوم هغه څه چه زه ئې غواړم بلکه هغه کوم
۱۶ چه نفرت ورنه کوم ۱۶ لیکن که زه هغه کوم چه نه ئې غواړم نو زه هغه
۱۷ شریعت منم چه ښائسته دَي ۱۷ نو اوس زه دَ هغه عمل کونکي نه یم بلکه
۱۸ هغه خطا چه په ما کښ میشته دَه ۱۸ ځکه چه زه پوهیږم چه په ما کښ
یعني ځما په جسم کښ نیک څیز نه اوسي ځکه چه په ما کښ اراده کول
۱۹ حاضر دِي لیکن دَ ښائسته کار عمل کول نشته ۱۹ ځکه هغه نیکي چه زه
ئې اراده لرم نه ئې کوم بلکه هغه بدِي چه اراده ئې نه کوم کوم ئې نو چه
زه هغه کوم چه اراده ئې نه لرم نو زه دَ هغه عمل کونکي نه یم بلکه هغه
۲۱ خطا چه په ما کښ میشته ده ۲۱ نو زه دا شریعت مومم چه زه چه دښائسته
۲۲ کولو اراده وکړم نو بدِي را ته حاضره ده ۲۲ ځکه چه زه دَ باطِني انسان
۲۳ په طور په شرعَ دَ الله خوښ یم ۲۳ لیکن زه یوه بله شرع په خپلو اندامونو
کښ وینم چه ځما دَ ذهن له شرعي سره جګړه کوِي او ما دَ هغي خطا په شرعَ
۲۴ کښ چه ځما په اندامونو کښ ده ګرفتاري کوي ۲۴ هَي زه کوربخت سړي یم
۲۵ څوک به مِ دَ دي مرګ له جُثي نه پرانزي ۲۵ دَ الله شکر کوم په وسیلي
دَ یسوع مسیح خداوند ځمونږ نو بیا زه خو په خپل ذهن سره دَ الله دَ
شریعت غلامي کوم لیکن په جُثي سره دَ خطا دَ شریعت *

## اتم باب

۱ ۲ ۱ نو اوس هغو لره چه په مسیح یسوع کښ دِي هیڅ فتوی نشته ۲ ځکه
چه شریعت دَ روح دَ ژوندانه په یسوع مسیح کښ زه ئې دَ خطا او دَ مرګ
۳ له شرعي نه آزاد کړلم ۳ ځکه هغه چه شریعت ورنه بي طاقت وه چه هغه
دَ جُثي په سبب ضعیف وه هغه الله چه زوي خپل ئې دَ خطا دَ جُثي په
شکل را واستاوه او دَ خطا دَ پاره په خطا کښ ئې په جُثي فتوی وکړه ـ

۴ ۴ تاچه حکم دَ شرعي په مونږ کامل شي چه دَجُسمي په طور نه ګرزیږو
۵ بلکه دَ روح په طور ۵ ځکه هغوي چه دَ جُسمي په طور دِي نو دَ جُسمي دَ څیزونه
۶ فکر کوِي سِکر هغوي چه دَ روح په طور دِي دَ روحانِي څیزونو ۶ ځکه چه جسمانِي
۷ فکر مرګ دَي لیکن دَ روح فکر ژوندون او سلامتِي ۷ ځکه چه فکر دَ
جُسمي عداوت دَ الله دَي چه دَ الله دَ شرعي تابع نه دَي چه توان نه
۸ ۹ لرِي ۸ او هغوي چه په جُسمي کښ دِي نه توانیږِي چه الله راضِي کړِي ۹ لیکن
تاسي په جُسمي کښ نه یئِ بلکه په روح کښ که چرِي روح دَ الله په تاسي
۱۰ کښ اوسِي لیکن که څوک دَ مسیح روح نه لرِي نو هغه دَ ده نه دِي ۱۰ او
که مسیح په تاسي کښ وِي نو جسه خو دَ خطا په سبب مړه ده لیکن
۱۱ روح دَ صداقت په سبب ژوندون لرِي ۱۱ او که روح دَ هغه چه یسوع ئي
له مړیو نه پورته کړ په تاسي کښ اوسِي نو هغه چه مسیح یسوع ئي له مړیو
نه پورته کړ ستاسي مړِي جُسمي به هم ژوندي کړِي دَ خپل روح په وسیلي
چه په تاسي کښ اوسیدونکي دَي
۱۲ ۱۲ پس اي وروڼو مونږ پوروړِي یُو نه دَ جُسمي چه دَ جُسمي په طور
ژوند وکړو ځکه چه که تاسي دَ جُسمي په شان ژوند کوئِ نو ضرور به مړه شئِ
او که په روح سره کارونه دَ جُسمي مړه کړئِ نو ژوندون به وکړئِ ځکه چه
۱۵ هغوي ټول چه دَ الله په روح سره بیولِي شوِي دِي دَ الله زامن دِي ۱۵ ځکه
چه تاسي روح دَ غلامِي وانه خست تاچه بیا ووېرېږئِ بلکه روح دَ فرزندئِ
۱۶ مو واخست چه په هغه سره مونږ ناري وهُو اي ابّا پلاره ۱۶ هم هغه روح
۱۷ په خپله څمونږ دَ روحونو سره شاهدِي لِي چه مونږ دَ الله فرزندان یُو ۱۷ نو
چه فرزندان شُو نو وارثان هم یعني وارثان دَ الله او وارثان دَ مسیح سره
که چرِ له ده سره درد زغمونکي یُو تاچه له ده سره جلال هم ومومُو
۱۸ ۱۸ ځکه چه زه ګنړم چه دَ اوسنئِ زمانِي دردونه په نسبت دَ هغه جلال
۱۹ چه په مونږ بانډِ ظاهر کیدونکي دي هیڅ نه دي ۱۹ ځکه چه انتظار دَ مخلوق
۲۰ دَ الله دَ فرزندانو دَ ظاهر بدلو امید لري ۲۰ ځکه چه مخلوق تابع دَ بطلان

کړي شه نه په مرضئِ سره بلکه دَ هغه په خاطر چه دوي تابع کړه ۲۱ په ۲۱
دي امید سره چه مخلوق به په خپله هم دَ وروستوالي له غلامئ نه آزاد
کړي شي دَ الله دَ فرزندانو دَ جلال وآزادئ ته ۲۲ ځکه چه مونږ پوهیږو ۲۲
چه ټول مخلوق تر اوسَ پوري سره زګیروي کوي او سره دَ لنګانه په درد کښ
دي ۲۳ او نه داسي فقط بلکه مونږ په خپله هم چه نوی میوه دَ روح لرو ۲۳
په خپلو ځانونو کښ زګیروي کوو دَ فرزندئ په امید سره ځمونږ دَ جُثو
فدیه ۲۴ ځکه چه مونږ په امید سره خلاص شو لیکن هغه امید چه نه لیدهٔ ۲۴
کیږي امید نه دي ځکه چه هغه څه چه څوک ئي ویني څه لره ئي امید لري
۲۵ لیکن که مونږ دَ هغه امیدوار یُو چه نه ئي وینو نو په صبر سره ۲۵
ئي امید لرُو

۲۶ او هم هسي روح ځمونږ دَ ضعیفیو کومک کوي ځکه چه مونږ
نه پوهیږو چه څه دُعا وغواړُو لکه چه بایده وي لیکن روح په خپله په
داسي زګیرویو سره چه بیان ئي نه شي ځمونږ شفاعت کوي ۲۷ او هغه ۲۷
چه دَ زړونو تفحص کونکي دَي پوهیږي چه دَ روح فکر څه دَي ځکه چه دَي
موافق په ارادي دَ الله دَ پاکانو شفاعت کوي ۲۸ او مونږ پوهیږو چه ۲۸
هغو ته چه په الله محبّت لري ټول څیزونه ښیګړي ته ځبله جوړیږي هغوي
ته چه دَده په ارادي سره موافق بللي شوي دي ۲۹ ځکه هغوي چه ۲۹
دَه وړاندِ وپیژاندل هغه ئي په وړاندِ مقرّر کړل چه دَده دَ زوي له
صورت سره مشابه شي تاچه دي په ډیرو ورونړو کښ مشر وي ۳۰ او ۳۰
هغوي چه ده وړاندِ مقرّر کړل وئي هم بلل او چه وئي بلل صادقان ئي
هم کړل او هغوي چه صادقان ئی کړل جلال ئي هم ورکړه

۳۱ نو مونږ به دي څیزونو ته څه ووایُو که الله ځمونږ په لوري دي نو ۳۱
څوک ځمونږ مخالف دي ۳۲ هغه چه خپل زوي ئي دریغ نه کړ بلکه ځمونږ ۳۲
دَ ټولو دَپارَ ئي وښانده نو به څرنګ له ده سره هم ټول څیزونه مونږ ته
ونه بخښي ۳۳ څوک به دَ الله په غورو شویو باندِ فریاد وکړي الله هغه ۳۳

۳۴ صادق‌کوُنکي دَي ۳۴ څوک دَي چه فتویٰ ورکوِي هغه مسیح یسوع هغه چه
مړ شه بلکه لا پورته هم شه هغه چه دَ الله په ښي لاس دي هغه چه
۳۵ ځمونږ شفاعت هم کوِي ۳۵ څوک به مونږ دَ مسیح له محبّت نه بیل کړِي گنړه
سختِي یا تنگِي یا ډېر یا لوږه یا برېنډوالي یا خَطَره یا تُوره لکه چه لیکلِي شوِي
دِي چه

۳۶ ۳۶ مونږ ټوله ورځ ستا دَپارَ قتل کیږُو
مونږ دَ گډو په شانِ ذبحي ته شمیرلِي شوِي یُو

۳۷ ۳۷ مگر په دي ټولو کښ زیات غالب یُو په وسیلي دَ هغه چا چه له مونږ سره
۳۸ يِ مینه وکړه ۳۸ ځکه چه ځما یقین دي چه نه مرگ او نه ژوندون او
نه فرښتي او نه رئیسان او نه موجود څیزونه او نه راتلونکي او نه قدرتونه
۳۹ ۳۹ او نه لوړه او نه ژوره او نه یَو بل مخلوق توانیږِي چه له هغي میني
دَ الله مو بیل کړِي چه په مسیح یسوع خداوند ځمونږ کښ ده ٭

## نهم باب

۱ ۱ زه په مسیح کښ رښتیا وایم دروغ نه کوم ځما تمیز هم په روحُ القدس
۲ سره گواهِي لِي ۲ چه ما لره لوي غم دي او ځما په زړه کښ درد دَي چه نه
۳ پرې کیږِي ۳ ځکه چه شوق مِ کیږِي چه زه په خپله له مسیح نه محروم وي
۴ ځما دَ وروڼو دَپارَچه دَ جُسّي په شان مِ خپلوان دِي ۴ هغوي چه اسرائیلي
دِي چه دوي ته فرزندِي او تمجید او عهدونه او امانت دَ تورات او عبادت
۵ او وعدي دِي ۵ چه دَ دوي پلرونه دِي او له هغوي نه مسیح چه دَ
۶ جُسّي په طور په ټولو دِ الله مبارک وِي تر ابده پوري آمِین ۶ لیکن دا
هسي نه ده چه دَ الله کلام پرېوتلي دي ځکه چه هغوي ټول چه له اسرائیلَ
۷ دِي اسرائیلي دِي ۷ او نه هغوي ټول چه دَ ابراهام اولاد دَي ټول فرزندان
۸ دِي بلکه تا ته به په اسحاق کښ اولاد وبللي شِي ۸ یعني داسي نه دِي چه
فرزندان دَ جُسّي فرزندان دَ الله دِي بلکه فرزندان دَ وعدي اولاد گڼلي
۹ شِي ۹ ځکه چه دا کلام دَ وعدي دَي چه زه به په دي وقت کښ راشم

او دَ ساري به زوي وي ۱۰ او نه تش دا بلکه ربقه هم له یوه نه حامله وه ۱۰
یعني ځمونږ له پلار اسحاق نه ۱۱ ځکه چه لا تر اوسَ زیږیدلي نه وو او ۱۱
لا نیک او بد ئي کړي نه وُو تاچه اراده دَ الله په موافق دَ اَختیار قایمه
شي نه له عملونو بلکه دَ هغه بلونکي ۱۲ دي ته وویل شول چه لوي ۱۲
به دَ وړوکي خدمت کوي ۱۳ لکه چه لیکلي شوي دي چه ما له یعقوب ۱۳
سره مینه ولرله او له عیسو سره کینه

۱۴ پس مونږ څه ووایُو کنزه الله ځنه ناراستي دَه څه؟ هسي دِ نه ۱۴
وي ۱۵ ځکه چه دي موسیٰ ته وائي چه په هر چاچه زه رحم کوم رحم کوم ۱۵
او په هرچاچه زه مهرباني کوم مهرباني کوم ۱۶ پس دا نه غوښتونکي لره نه ۱۶
زغلیدونکي لره بلکه الله لره چه رحیم دَي ۱۷ ځکه چه کتاب فرعون ته ۱۷
وائي چه ته مِ دَ دي دَپارَ پورته کړي چه خپل قدرت په تاکښ ښکاره
کړم او چه په ټولي زمکي نُوم ځما وعظ کړي شي ۱۸ نو دي رحم کوي په هغه ۱۸
چاچه غواړي او سخت کوي هغه چا لره چه غواړي

۱۹ نو ته به ما ته ووائي چه بیا ولي هغه ملامتي کوي څوک دَده دَ ۱۹
ارادي مقابله کوي ۲۰ مګر ته څوک یي اي سړیه چه الله ته ځواب ورکوي کنزه
جوړ شوي به جوړونکي ته ووائي چه زه دِ ولي داسي جوړ کړم ۲۱ یاکنزه کُلال ۲۱
په خټي اختیار نه لري څه؟ چه له یوي پیړي نه یو لوښي دَعزت دَپارَ او بل
دَ بي عزتي دَپارَ جوړ کړي ۲۲ څه شي که الله دَ خپل غضب دَ ښکاره کولو او دَ خپل ۲۲
قدرت دَ مشهورولو دَپارَ اراده وکړي چه په ډیر ترس سره دَ غضب دَ لوښو
چه هلاکت له تیار کړي شو زغم وکړي ۲۳ او چه دَ خپل جلال دولتمندي ۲۳
ښکاره کړي په لوښو دَ رحمت باندِ چه وړاندِ ئي دَ جلال دَپارَ تیار کړل
۲۴ هغه چه مونږ ئي هم وبللو نه یوازي له یهُودیانو بلکه له غیر قومونو ۲۴
نه هم ۲۵ لکه چه په هوشع کښ هم وائي چه ۲۵

هغو لره چه امّت ځما نه وه خپل امّت به ئي وبولم

او هغه چه محبوبه نه وه محبوبه

۲۶ ۲۶ او داسي به وشي په هغه ځاي کښې چه هغو ته وويل شول چه تاسي
خما امت نه يئ
نو هغه ځاي به دوي دَ ژوندي الله فرزندان وبللي شي
۲۷ ۲۷ او اشعيا دَ اسرائيل په باب کښې ناري وهي چه اګرکه شمار دَ بني اسرائيل
۲۸ لکه دَ درياب شګي وي نو هغه باقي به نجات ومومي ۲۸ ځکه چه خداوند به په
۲۹ زمکه باندې خپل کلام پوره کړي تمام او ژر به ئي کړي ۲۹ لکه چه اشعيا وړاندې وويل چه
که چري يهوَه دَ لښکرو څښتن دَ پاره نسل پرينښي نه وي
نو مونږ به دَ سدوم غوندې او دَ عموره په شان شوي وُو
۳۰ ۳۰ نو اوس څه ووايو هغه غير قومونو چه په صداقت پسي نه زغليدل صداقت ئي
۳۱ حاصل کړ يعني هغه صداقت چه په ايمان سره دي ۳۱ مګر اسرائيل دَ صداقت
۳۲ په شريعت پسي زغليدل هغه شريعت ته و نه رسيدل ۳۲ نو ولي ځکه چه نه په
ايمان سره بلکه لکه په عملونو سره ځکه چه هغوي دَ ټکر په کاڼي ټکر وخوړ -
۳۳ ۳۳ لکه چه ليکلي شوي دي چه
ګوره زه په صيحون کښې دَ ټکر کاڼي او دَ ښوئيدلو پرښه ږدم
او هغه څوک چه ايمان پرې راوړي شرمنده به نه شي

## لسم باب

۱ آ اي ورونړو خما دَ زړه آرزو او سوال پر الله ته دَ دوي دَ نجات دَ پاره دي
۲ ۲ ځکه چه زه دوي له شاهدي لرم چه دَ الله غيرت لري ليکن نه په موافق
۳ دَ پوهي سره ۳ ځکه چه دوي له صداقتَ دَ الله ناپوهان وُو او وئي غوښتل
۴ چه خپل ثابت کړي نو تابعدار دَ صداقت دَ الله نه شول ۴ ځکه چه آخر دَ
۵ شرعي مسيح دي دَ پاره دَ صداقت دَ ټولو مؤمنانو ۵ ځکه چه موسیٰ ليکي چه
۶ هغه سړي چه دَ شرعي صداقت کوي په هغه کښې به ژوندي شي ۶ ليکن
هغه صداقت چه په ايمان سره دي داسي وايي چه ته په خپل زړه کښې مه
۷ وايه چه څوک به آسمان ته وخيژي (تا چه مسيح رابنکته کړي) ۷ يا څوک به تهترين
۸ ته ورکوز شي (چه مسيح له مړيو نه راپورته کړي) ۸ ليکن څه وايي دا چه کلام

تا ته نژدي ستا په خولي او ستا په زړه کښې یعني کلام دَ هغه ایمان چه
۹ مونږ وعظ پرې کوُو ۹ چه که ته په خپلي خولي په خداوند یسوع اقرار
وکړې او په خپل زړه کښې ایمان راوړې چه الله هغه له مړو نه پورته
۱۰ کړ نجات به ومومې ۱۰ ځکه چه په زړه سره ایمان راوړه کیږي صداقت
۱۱ لره او په خولي سره اقرار کیږي دَ نجات دَپاره ۱۱ ولي چه کتاب وایي
چه هر هغه څوک چه په ده ایمان راوړي شرمنده به نه شي -
۱۲ ۱۲ چه دَ یهودي او دَ یوناني فرق نشته ځکه چه هم هغه خداوند دَ ټولو
۱۳ غني دَي او هغو ټولو لره چه دې بولي ۱۳ ولي هر څوک چه دَ خداوند
۱۴ نوم بولي نجات به مومي ۱۴ پس څرنګ به ئې وبولي چه ایمان ئې پرې راوړی
نه دَي څرنګ به په هغه ایمان راوړي چه آوریدلي ئې نه دي او څرنګ
۱۵ به بي واعظَ واوري ۱۵ او څرنګ به وعظ وکړي چه استولي شوی نه وي
لکه چه لیکلي شوي دي چه
څرنګ ښائسته دي قدمونه دَ زیري کونکو
۱۶ ۱۶ لیکن ټولو انجیل ونه مانه ځکه چه اشعیا وایي
اي خداوندَ چا څمونږ په خبره ایمان راوړ
۱۷ ۱۷ پس ایمان په اوریدلو سره او اوریدل دَ مسیح دَ خبري په سبب
۱۸ ۱۸ لیکن زه وایم چه کنړه هغو وانه وریدل
هو آواز دَدوي ټولي زمکي ته ووت
او خبري دَدوي دَ آبادیٔ ترحدونو پوري
۱۹ ۱۹ لیکن زه وایم چه کنړه اسرائیل ونه پوهیده څه ؟ اوّل موسیٰ وایي چه
زه به تاسي غیرت ناک کړم په هغه چه قوم نه دي
او په ناپوهه قوم به مو و قهروم
۲۰ ۲۰ او اشعیا زړورتوب کوي او وایي چه
زه له هغوي نه چه نه ئې لټولم وموندلي شوم
او ښکاره شولم هغوي ته چه پوښتنه ئې رانه نه کوله

۲۱ ۲۱ لیکن دَ اسرائیل په حق کښې وائي چه ما ټوله ورځ خپل لاسونه اوږده
کړل په لوري دَ نافرمان او دَ مخالف قوم

## یولسم باب

۱ ۱ پس زه وایم چه الله خپل امت ترک کړ شه؟ هسي دِ نه وِي ځکه چه زه
۲ هم اسرائیلي دَ ابراهام له نسلَ دَ بنیامین له قبیلي ۲ الله هغه خپل امت
چه وړاندِ ئي وپیژاند ترک نه کړ کُنزه تاسي نه پوهیږئ چه کتاب دَ اِلیاس
په باب کښې څه وائي چه دي څرنګ الله ته دَ اسرائیل په خلاف فریاد
۳ کوي ۳ چه اي خداوندَ هغوي ستا نبیان قتل کړل او ستا مذبحونه
۴ ئي ونړول او زه یوازي پاتي شوم او هغوي زما دَ ځـان لټوي ۴ لیکن
دَ الله اِلهام څه ورته وائي ما لره اوه زره سړي پاتي دِي چه بعل ته ئي
۵ زنګنونه لګولي نه دِي ۵ پس هم داسي په اوسِني وقت کښې یوه بقیه شته
۶ په سبب دَ اختیار دَ فضل ۶ لیکن که په فضـل سره وِي
نو بیا پـه عـمـلونو سره نه ده او که نه نو بیا فضل فضل
۷ نه شه ۷ نو بیا څه هغه څه چه اسرائیل ئي تلاش کوي بیا ئي ونه موند
۸ لیکن غوره شویو بیاموند او باقي سخت دِله شول ۸ لکه چه لیکلي شوِي
دِي چه الله هغو ته پرِنالکیدونکي روح ورکړ هغه سترګي چه ونه وِیني او
۹ هغه غوږونه چه وانه وري تر نن ورځي پوري ۹ او داؤد وائي چه

دَ هغو دسترخوان دِ دَ هغو دَپارَ لومه او دُغل
او بُدرِي او سزا شِي
۱۰ ۱۰ دَ هغو سترګي دِ تاریکي کړي شِي تاچه ونه وِیني
او شا دَدوي هر وقت کوپه کړه

۱۱ ۱۱ نو زه وایم چه دوي بُدرِي وخوړه تاچه وپرځي هسي دِ نه وِي بلکه
دَدوي له پریوتلو نه غیر قومونو ته نجات مِلیا شه دَدوي دَ غیرت ناک کولو
۱۲ دَپارَ ۱۲ پس که پریوتنه دَدوي دولت دَ عالم وه او دَ دوي زیان دولت
دَ غیر قومونو نو څومره زیات دکوالي دَ هغو

١٣ لیکن زه تاسي غیر قومونو ته وایم نو په دي سبب چه زه دَ ١٣
غیر قومونو رسول یم دَ خپل خدمت جلال کوم ١٤ تاچه په څه طور سره خپلو ١٤
هم‌جنسو ته غیرت ورکړم اوځني له دوي نه به خلاص کړم ١٥ ځکه که دَ دوي ١٥
غورزول سبب دَ صلحي کولو دَ عالم وِي نو قبول کیدل دَ دوي به څه وِي مګر
ژوندون له مړیو ١٦ نوچه اوّل میوه مُقدّس وِي خمیره هم هسي او که ١٦
بیخ مُقدّس وِي نو ښاخونه هم هسي ١٧ اوکه ځني له ښاخونو پریکړي ١٧
شول او ته چه صحرائِي زیتون یي په هغوي کښ پیوند کړي شوي او دَ
زیتون دَ بیخ په غوړوالِي کښ شریک شوي ١٨ نو ته په ښاخونو باندِ فخر ١٨
مه کوه او که ته فخر کوي نو ته هغه نه یي چه بیخ قایم کړي بلکه هغه
بیخ تا له ١٩ نو ته به ووایي چه ښاخونه پریکړي شول تاچه زه پیوند کړي شم
٢٠ ښه هغوي دَ بي‌ایمانئِ په سبب پریکړي شول او ته په ایمان ولاړ یي ٢١ نومغرور ٢٠ ٢١
مه شه بلکه وویریږه ځکه چه که الله په طبعي ښاخونو شفقت ونه کړ
په تا به هم شفقت ونه کړي ٢٢ نوګوره مهربانِي او سختِي دَ الله نو سختي ٢٢
په هغو باندِ چه پریوتل لیکن مهربانِي دَ الله په تا باندِ که ته په هغي
مهربانئِ کښ پاتي شي اوکه نه نو ته به هم پریکړي شي ٢٣ او هغوي هم ٢٣
که په بي‌ایمانئِ کښ پاتي نه شِي نو به پیوند کړي شِي ځکه چه الله قادر
دَي چه دوباره ئي پیوند کړي ٢٤ ځکه چه که ته له هغه پریکړي شوي چه ٢٤
طبعي صحرائِي زیتون دَي او په خلاف دَ طبعي په کړه زیتون کښ پیوند شوي
نو څومره زیات به دوي چه طبعي دِي په خپل زیتون کښ به پیوند کړي شِي
٢٥ اي ورونړو زه نه غوارم چه تاسي له دي راز نه ناپوهان شئِ ٢٥
هسي نه چه خپل ځانونه زیرکان وګنړئِ په ځنو له اسرائیلو نه سخت‌دلي
پریوته تر هغه پوري چه دِکوالي دَ غیر قومونو ورننوزي ٢٦ او په دي شان ٢٦
به ټول اسرائیل خلاص شِي لکه لیکلي شوِي دِي چه

خلاصونکي به له صیحونَ راووزي

او بي‌دِیني به له یعقوبَ وګرزوِي

٢٠ ٢٠ او له هغو سره دِ دغه وعده ده
هر کله چه زه دَ دوي خطاوي لري کړم
٢٨ ٢٨ هغوي دَ انجیل په سبب ستاسي په جهت دُښمنان دِي لیکن دَ غوره توب
٢٩ له جهته دَ پلرونو په سبب محبوبان دِي ٢٩ ځکه چه بخششونه دَ الله
٣٠ او بلني دَ الله بي پښیمانئِ دِي ٣٠ ځکه لکه چه تاسي هم یو وار دَ الله نافرماني
٣١ وکړه لیکن اوس مو دَ هغو له نافرمانئِ نه رحم وموند ٣١ هم هسي هغوي
هم اوس نافرمان شول تاچه ستاسي له رحم موندلو نه دوي هم رحم
٣٢ بیامومي ٣٢ ځکه چه الله ټول په نافرمانئِ کښ بند کړل تاچه په وارو رحم وکړي
٣٣ ٣٣ اَخ ژوري دَ دولت او دَ حکمت او دَ علم دَ الله عدالتونه دَ ده څومره
٣٤ له تفحص لري دِي او لاري دَ ده څومره له سراغه کولو دِي ٣٤ ځکه چه چا دَ خداوند ذهن
٣٥ پېژاندلي دي یا څوک دَ ده صلحکار شه ده ٣٥ یا چا ده ته څه ورکړي دِي چه وِله بیرته
٣٦ عوض ورکړي شي ٣٦ ځکه چه ټول څیزونه له ده نه او دَ ده په وسیلي او ده لره دِي
او ده لره دِ تر ابد الآباد پوري تمجید وِي آمین ❊

# دولسم باب

١ آ پس اي ورورو په سبب دَ مهربانئِ دَ الله زه تاسي ته زارِي کوم چه خپلي
جُثي ژوندي قربانئِ مقدسي پسندیده دَ الله پېښکښ کړئِ چه دا معقول عبادت
٢ ستاسي دي ٢ او دَ دي زماني همشکل مه کیږئِ بلکه دَ ذهن په نوِي کولو له
صورت بدل شئِ تاچه تاسي اراده دَ الله چه نیکه او غوره او کامله
ده و پېژنئِ چه څه ده
٣ ٣ چه زه په هغه فضل سره چه ما ته راکړي شوي دَي هر یوه ته
چه په تاسو کښ دَي وایم چه فکر دِ نه کوِي زیات لوي له هغه نه چه
فکر کول بایده دِي بلکه معقول فکر دِ کوِي لکه چه الله هر یوه ته په مقدار دَ ایمان
٤ ور وویشه ٤ ځکه لکه چه په یوه جُثه کښ ډېر اندامونه لرو او ټول اندامونه یو
٥ عمل نه لرِي ٥ هم هسي مونږ ډېر په مسیح کښ یوه جُثه یُو او بیل بیل اندامونه
٦ یُو بل لره ٦ لیکن مونږ مختلف بخششونه لرو په موافق دَ هغه فضل چه مونږ

۷ نه راکړي شوي دَي که نبوّت وِي نو دَ ایمان په اندازي ۷ که خدمت وِي نو په
۸ خدمت‌گذارِي کښِ که استاد وِي نو په تعلیم کښِ ۸ که ناصح وِي نو په نصیحت
کولو کښِ هغه ورکونکي په سخاوت کښِ هغه پیشوا په کوشش کښِ هغه
۹ رحم کونکي په خوشحالئ کښِ ۹ محبّت دِ بي‌ریا وِي له بدي نه نفرت کونکي شئ او
۱۰ له نیکئ سره ملیاکیدنکي ۱۰ دَ ورورولئ په محبّت کښِ یو له بل سره مینه کونکي شئ
۱۱ په عزّت کښِ یو بل له څانه وړاندِ ګڼئ ۱۱ په کوشش کښِ سستي کونکي مه شئ
۱۲ په روح کښِ سرګرم دَ خداوند عبادت کونکي ۱۲ په هغه امید کښِ خوشحالي
۱۳ کونکي په تنګسه کښِ صابره په دُعا کښِ ټکره اوسئ ۱۳ دَ پاکانو په حاجتونو
۱۴ کښِ شریکان شئ دَ مسافرانو په نمانځه کښِ لګیا اوسئ ۱۴ او په هغو چه
۱۵ تاسي ربړوي برکت کوئ او لعنت مه کوئ ۱۵ له خوشحالي کونکو سره خوشحالي
۱۶ او له ژړاکونکو سره ژړا کوئ ۱۶ یو له بل سره فکر کونکي شئ دَ لوړو څیزونو
۱۷ فکر کونکي مه شئ ۱۷ بلکه دَ ذلیلو څیزونو لحاظ کونکي شئ خپل څانونه دانا
مه ګڼئ او له هیچا سره دَ بدئ په عوض کښِ بدي مه کوئ دَ ټولو سړیو
۱۸ دَ وړاندِ دَ بناسِته څیزونو تجویز کوئ ۱۸ او که امکان لري نو په خپل وس
۱۹ سره له ټولو سړیو سره په صلح کښِ اوسئ ۱۹ اي محبوبانو خپله بدله مه اخلئ
بلکه غُصّي ته ځاي ورکړئ لکه چه لیکلي شوي دي چه بدله اخستل
۲۰ ځما دي زه به بدله اخلم خداوند وائي ۲۰ پس که ستا دُښمن وږي وِي وئ
خوروه او که تږي وِي اوبه ئي کړه ځکه چه که ته داوکړي نو دَ اور سکروټي
۲۱ به دَ هغه په سر انبار کړي ۲۱ له بدئ نه مغلوب مه شه بلکه بدي په
نیکئ مغلوبه کړه ٭

## دیارلسم باب

۱ هر کس دِ دَ لوي اختیار لرونکو تابعدار شي ځکه چه هیڅ اختیار نشته مګر
۲ له الله نه او هغه چه دِي له الله نه مقرّر کړي شوي دي ۲ پس هر څوک
چه له اختیار سره مقابله کوِي له قانونه دَ الله نه مخالفت کوِي او مقابله
۳ کونکي به خپلو ځانو لره عدالت واخلِي ۳ ځکه چه حاکمان دَ نیک کارو یره

نه دِي بلکه دَ بد کار پس که ته اراده وکړي چه له اختیارَ نه ووېرېږي نو
۴ نېکي کوه او له هغه به شاباسي بیاموي ۴ ځکه چه هغه ستاسي دَ بهترۍ
دَپارَ دَ الله خادم دَي مگر که ته بدِي کوي نو ووېرېږه ځکه هغه عبثه تُوره نه اخلي
۵ چه خادم دَ الله ذي بدله اخستونکي غضب لره له هغه چه بدِي کوي ۵ پس
تابعدارِي کول ضرور دِي نه صرف دَ غضب په سبب بلکه دَ تمیز په سبب
۶ ۶ او هم له دي سببَ جزیه هم ادا کوئِ ځکه چه هغوي خادمان دَ الله او په
۷ دي کار کښ همېشه لگیا دِي ۷ نو لو ته دَدوي حق ورکوئِ جزیه هغه لره چه
جزیه دار وِي خراج هغه ته چه خراجدار وِي ویره هغه ته چه دَ وېرې (حقدار وِي)
عزّت هغه ته چه عزت‌دار وِي
۸ ۸ تاسو دَ هیچا هیځ پوروري مه شئِ بې له دي چه یو په بل دِ مینه کوئِ
۹ ځکه چه هرڅوک چه په بل مینه کوِي توریت ئې پوره کړي دي ۹ ځکه داچه
زنا مه کوه خون مه کوه غلا مه کوه حرص مه کوه او که بل څه حکم وِي
نو هغه دَدي کلام په باب کښ درج دَي چه ته به له خپل گاونډِي سره دَ
۱۰ خپل ځان په شان محبّت کوي ۱۰ هغه محبّت له گاونډِي سره بدِي نه کوِي نو
محبّت چه دي پوره کول دَ توریت دِي
۱۱ ۱۱ او دا چه تاسي په وقت پوهیدونکي یئِ چه اوس بعینه هغه وقت
دَي چه له خوب نه ویښ شئِ ځکه چه اوس مونږ ته نجات ډېر نژدي دي
۱۲ له هغه ساعت نه چه مونږ ایمان راوړي وه ۱۲ شپه تیره ورځ نژدي شوه
۱۳ نو دَ تیاري کارونه دِ وباسُو او دَ نُور وسله دِ واغوندُو ۱۳ مونږ دِ په
لایق طور سره وگرزو لکه چه په ورځ کښ نه په مستئ کولو او نه په نشه
۱۴ او نه په خملاستلو او نه په فسق او نه په جگړي او په حسد کښ ۱۴ بلکه
خداوند یسوع واغوندئِ او دَ جُسني تدبیر دَ شهوتونو دَپارَ مه کوئِ ÷

## څوارلسم باب

۱ ۱ هغه چه په ایمان کښ ضعیف دِي قبول ئې کړئِ مگر نه دَ شکمنو عدالتونو
۲ دَپارَ ۲ یو ایمان راوړي چه هرڅه وخوري او بل چه ضعیف وِي ساگ خوري

٣ پس هغه چه خوري هغه لره چه نه خوري نه دِ سپک کوي او هغه ٣
چه نه خوري په هغه چه خوري حکم دِ نه کوي ځکه چه هغه لره الله قبول
کړي دَي ٤ ته څوک يي چه دَ بل چا په نوکر حکم کوي هغه خو خپل خاوند ٤
ته ولاړ دَي يا پرېوزي ليکن هغه به ودرولي شي ځکه چه خداوند قادر
دي چه هغه ودروي ٥ يو يوه ورځ له بلي ورځي نه ښه ګڼي او بل ټولي ٥
ورځي (ښي ګڼي) هر يو دِ په خپله پوهه يقين لري ٦ هغه چه په ورځي فکر کوي ٦
دَ خداوند دَپارَ فکر کوي او هغه چه خوري دَ خداوند دَپارَ خوري ځکه چه
دَ الله شکر کوي او هغه چه نه خوري دَ خداوند دَپارَ نه خوري او دَ الله
شکر کوي ٧ ځکه چه هيڅوک له مونږ نه دَ خپل ځان دَپارَ ژوندون نه کوي ٧
او هيڅوک دَ خپل ځان دَپارَ نه مري ٨ او که مونږ ژوندون کوو دَ خداوند ٨
دَپارَ ژوندون کوو او که مرو خداوند لره مرو پس که ژوندون کوو که مرو
دَ خداوند يو ٩ ځکه چه مسيح دي دَپارَ مړ شه او بيا ژوندی شه تا چه ٩
په مړيو او په ژونديو خاوندي وکړي ١٠ نو ته څه دَپارَ په خپل ورور حکم ١٠
کوي يا ته بيا څه دَپارَ خپل ورور سپک ګڼړي مونږ ټول به دَ الله دَ
عدالت دَ تخت دَ وړاندِ ودرېږو ١١ لکه چه ليکلي شوي دِي چه ١١

زه حَيْ يم خداوند وايي هر زنګون به را ته ولګېږي
او هره ژبه به دَ الله حمد وکړي

١٢ نو بيا به له مونږ نه هر يو دَ خپل ځان په باب الله ته حساب ورکړي ١٢
١٣ پس مونږ دِ يو په بل حکم ونه کړو بلکه په دي دِ لا زيات حکم ١٣
وکړو چه هيڅوک دِ خپل ورور ته دَ بدرئ يا دَ ټکر سبب کښېنه ږدي ١٤ زه ١٤
پوهېږم او په خداوند يسوع مسيح کښ مِ يقين دَي چه هيڅ څيز په خپله
مردار نه دي ليکن هغه چا ته چه مُردار ګڼړي هم هغه ته مُردار دَي ١٥ او ١٥
که ستا ورور دَ خوراک په سبب خپه شي نو ته لا تراوسَ دَ محبت په موافق
نه ګرزي په خپل خوراک سره هغوي چه دَ هغو دَپارَ مسيح مړ شه مه هلاکوه
١٦ پس ستاسي په نيکئ دِ تهمت ونه وېلي شي ١٧ ځکه چه بادشاهت دَ الله ١٦

خوراک څښناک نه دي بلکه صداقت او صلحه او خوشحالي په رُوحُ القُدس
۱۸ کښې ۱۸ ځکه چه هغه څوک چه په دي کښې دَ مسیح غلامي کوي پسندیده
۱۹ دَ الله او مقبول دَ انسان دَي ۱۹ پس مونږ دِ دَ هغو څیزونو پیروي وکړو
چه سبب دَ صلحي اوچه یو بل لره دَ جوړولو سبب وِي ۲۰ دَ خوراک دَپارَ
کار دَ الله مه خرابوه ټول څیزونه پاک دِي لیکن هغه سړي ته بد دِي چه
۲۱ په ټوکر سره يُ خوري ۲۱ ښه دِي غوښې نه خوړل او شراب نه څښل او نه بل
۲۲ څیز کول چه په کښې ستا ورور بُدَرَي خوري ۲۲ کنږه تهَ ایمان لري نو دغه
دَ خپل ځان دَپارَ دَ الله دَ وړاندِ ولره مبارک هغه دیَ چه خپل ځان ګرم
۲۳ نه کړي په هغو څیزونو کښې چه خوښ يُ کړي ۲۳ لیکن هغه څوک چه شک
لري نو که وخوري ګرم بد شي ځکه چه دا له ایمانَ نه دِي او هرڅه چه له
ایمانَ نه وِي هغه خطا دَه ÷

# پنځلسم باب

۱ ۱ پس په مونږ بانِدِ چه قوِي يُو واجب دِي چه دَ ناتوانو ضعیفي پورته کړو او
۲ خپل ځانونه دِ ونه خوښوو ۲ هر یو له مونږ دِ دَ دَه دَ بناکولو دَپارَ خپل
۳ ګواندِي له په نیکيِ کښې خوشحالَ کړي ۳ ځکه چه مسیح هم خپل ځان خوشحاله
نه کړ بلکه لکه چه لیکلِي دِي چه ستا دَ بښکنځونکو بښکنځل په ما پرِیوتل
۴ ۴ ځکه هغه څه چه وړاندِ لیکلِي شوِي وُو څمونږ دَ تعلیم دَپارَ ولیکلِي
شول دي دَپارَ چه دَ هغه صبر په وسیلي او دَ هغي تسليِ په سبب چه دَ کتابونو
۵ دِي امیدوار یُو ۵ او اَللّه دَ صبر او تسلي دِ دا تاسي ته درکړي چه تاسي موافق دَ
۶ یسوع مسیح په خپل مینځ کښې سره هم فکر کښې شيِ ۶ تاچه تاسي په
یو زړه او په یوي خولي سره څمونږ دَ خداوند یسوع مسیح الله پلار لره تمجید
۷ وکړيِ ۷ دي دَپارَ یو بل قبول کړيِ لکه چه مسیح هم مونږ قبول کړو دَ الله
۸ دَ تمجید دَپارَ ۸ ځکه چه زه وایم چه مسیح خادم دَ ختني شه دَپارَ دَ
۹ راستيِ دَ الله تاچه وعدي دَ پلرونو ثابتي کړي ۹ او چه قومونه دَ رحمت
په سبب الله ته تمجید وکړي لکه چه لیکلِي دِي چه

زه به دي دَپارَ دَ قومونو په مینځ کښې ستاحمد وکړم
او ستا نوم ته به سرود وغږوم
۱۰ ۱۰ او بیا وايي چه
اي غیر قومونو دَده له امّت سره خوشحال اوسئ
۱۱ ۱۱ او بیا چه
دَخداوند ثنا وکړئ اي ټولو غیر قومونو
او مدحه ئې کوئ اي ټولو قبیلو
۱۲ ۱۲ او بیا اشعیا وايي چه
دَیسي به هغه بیخ وشي
او هغه پاڅیدونکي چه په غیر قومونو حکومت وکړي
او په هغه به دَغیر قومونو اُمید وي
۱۳ ۱۳ او دَ اُمید الله به تاسي دَ ایمان په راوړلو کښې له ټولي خوشحالئ او له
صلحي ډک کړي تاچه تاسي په قدرت دَ رُوحُ القُدس سره په هغه اُمید کښې
ډیر زیات شئ
۱۴ ۱۴ اي څما ورونړو زه په خپله هم ستاسي په حق کښې یقین لرم
چه تاسي په خپله په نیکیو ماړه يئ او له ټوله علم ډک شوي قادر يئ چه یو بل
۱۵ ته نصیحت وکړئ ۱۵ لیکن ما په ډیري دِلاورئ سره تاسي ته ولیکل لکه چه زه
تاسي ته یاد درکونکي یم په سبب دَهغه فضل چه له الله نه راته عنایت
۱۶ کړي شوي وه ۱۶ چه دَغیر قومونو دَپارَ دَ یسوع مسیح خادم شم خدمت کونکي لکه
کوهن دَ انجیل دَ الله تاچه دَغیر قومونو ذبیحه قبوله شي مقدّسه شوي په
۱۷ روح القدس کښې ۱۷ پس ما لره په باب دَ څیزونو دَ الله په یسوع مسیح کښې فخر
۱۸ دي ۱۸ ځکه چه زه دِلاوري نه کوم چه ووایم بي له هغو څیزونو چه مسیح څما
۱۹ په وسیلي کړي دي دَ غیر قومونو دَ تابعداريِ دَپارَ په قول او په فعل سره ۱۹ په
قوّت دَ نخښو او دَ کرامانونو په قدرت دَ رُوحُ القُدس په هسي شان چه ما
له اورشلیم نه او چاپیره تر الرکم پوري دَ مسیح دَ انجیل پوره زیري کړي دي

۲۰ ۲۰ او زه داسي عزّت مشتاق وم چه هر هغه ځاي چه نوم دَ مسیح مشهور
نه وه هلته زیري دَ انجیل ورکړم تاچه په پردي بنیاد بنا و نه کړم بلکه لکه
چه لیکلي دِي چه٠

۲۱ ۲۱ هغه څوک چه دَده په باب خبر نه وه وبه ویني
او هغوي چه آوریدلي نه وُو وبه پوهیږي

۲۲ ۲۳ ۲۲ له دي سببَ زه ډیر واره ستاسي له درتلو نه منع کړي شوم ۲۳ نو
اوس چه زه په دي ملکونو هیڅ ځاي نه لرم اوچه له ډیرو کالونو تاسي ته دَدرتلو
۲۴ آرزو لرم ۲۴ نو هرکله چه زه اسپانیي ته ځم (ځکه چه امید لرم چه په تیریدلو
کښ به تاسي ووینم او له تاسو به په هغه لوري رخصت کړي شم پس له هغه
۲۵ چه اوّل ستاسي په ملاقات څه قدر موړ شم) ۲۵ لیکن اوس دَ پاکانو دَ
۲۶ خدمت کولو دَپارَ اورشلیم ته ځم ۲۶ ځکه چه دَ مقدونیي او دَ آخیي والو دا
خوښه شوه چه دَ هغو مفلسو مقدّسانو دَپارَ چه په اورشلیم کښ دِي
۲۷ څه قدر خیرات واستوي ۲۷ دا ئي خوښه شوه او هغوي دَدوي پوروړي دِي
ځکه هرکله چه غیرقومونه په روحاني څیزونو کښ دَدوي شریکان شول نو
په دوي دا واجب دِي چه خدمت دَ هغو په جسماني څیزونو کښ هم وکړي
۲۸ ۲۸ نو هرکله چه داکار پوره کړم او دا میوی هغو لره مُهر کړم نو زه به له تاسي
۲۹ نه اسپانیي ته روان شم ۲۹ او زه پوهیږم چه که تاسي ته درشم په کامل برکت
دَ مسیح کښ به درشم

۳۰ ۳۰ او اي ورونړو زه تاسي ته منّت کوم څموږ دَخداوند یسوع مسیح په
خاطر او دَ روح دَمحبّت په سبب چه تاسي ځما دَپارَ له ما سره الله ته په دُعاوُ
۳۱ کښ کوشش وکړئ ۳۱ تاچه زه له هغو نافرمانو چه په یهودیه کښ دِي خلاص
شم او چه ځما خدمت دَ اورشلیم دَپارَ دَ پاکانو په نزد مقبول
۳۲ شي ۳۲ تاچه په ارادي دَ الله په خوشحالئ سره تاسي ته درشم او
۳۳ له تاسي سره آرام وموم ۳۳ پس دَ صلحي الله دِ له تاسي ټولو
سره وِي آمین ❊

# شپاړسم باب

۱ آ زه تاسي ته خپونږ خور فیبي چه په کنکرِیَ کښِ دَ کلیسیي خادمه ده سپارم
۲ ۲ چه تاسي دا په خداوند کښِ داسي قبوله کړئ لکه چه دَ پاکانو سره لایقه
ده او په هر څیز کښِ چه تاسي ته محتاجه وِي مدد ئي ورکړئ ځکه چه دا
په خپله دَ ډېرو مددګاره شوي ده بلکه ځما هم
۳ ۳ پریسکلا او اَقِلا ته چه په مسیح کښِ ځما همکاران دِي سلام مِ ورکړئ
۴ هغوي چه ځما دَ ژوند دَپارَ ئي خپلي غاړي کېښودي ۴ هغوي ته چه نه
۵ زه یواځي ئي شکر کوم بلکه دَ غیر قومونو ټولي کلیساي هم ۵ او هغي
کلیسیي ته چه دَ دوي کره ده سلام وایي اوځما محبوب اِپِنِتس
۶ ته چه دَ مسیح دَپارَ دَ ایشیا نوي میوه ده سلام وایئ ۶ او مریمي ته چه
۷ خپونږ دَپارَ ئي ډېر محنت کړي دَي سلام وایئ ۷ اَندرُونِقس او یونیاس ته
مِ سلام وایئ چه ځما خپلوان او راسره بندیان وُو هغوي چه په رسولانو
۸ کښِ نامدار دِي او له ما نه وړاندِ په مسیح کښِ وُو ۸ اَمپلِیاس ته چه
۹ په خداوند کښِ مِ محبوب دي سلام وایئ ۹ او اُوربانُوس ته چه په مسیح
۱۰ کښِ ځما همکار او ځما محبوب اَسطاخس ته سلام وایئ ۱۰ اَپِلیس ته چه
په مسیح کښِ مقبول دَي سلام وایئ او دَ اَرِسطوبُولس خیلخانې ته مِ
۱۱ سلام وایئ ۱۱ او ځما خپلوان هیرودیون ته مِ سلام وایئ هغوي ته چه له
۱۲ خیلخانې دَ نَرکِسُوس په خداوند کښِ دِي سلام وایئ ۱۲ ترِیوفِینا او
۱۳ ترِفوسا ته چه په خداوند کښِ کار کونکي دِي سلام وایئ ۱۳ پِرسِیس محبوبي
ته چه په خداوند کښِ ئي ډېر محنت کړي وه سلام وایئ روفس ته چه په
خداوند کښِ غوره شوي دي او دَ ده مور ته اوځما هم سلام وایئ-
۱۴ ۱۴ او اسینکرِیتس او افلیغون او هَرماس ته او پطروباس او هرمیس
۱۵ ته او هغو وروڼو ته چه له دوي سره دِي سلام وایئ ۱۵ فیلولګس او
جُولیا او نیریُوس او دَ دوي خور ته او اُولَمپاس او هغو ټولو پاکانو ته چه

۱۶ لہ دوي سرہ دِي سلام وایِي ۱۶ یو بل تہ لہ پاکو ښکلولو سرہ سلام
وایِي ټولي کلیسیا دَ مسیح تاسي تہ سلام وایِي
۱۷ ۱۷ اي ورونړو زہ تاسو تہ زارِي کوم چہ تاسو ملاحظہ وکړِئ لہ هغو
نہ چہ دَ جدائِي ورکولو او دَ بُدریو کار کوِي پہ خلاف دَ هغہ تعلیم چہ
۱۸ تاسي زدہ کړِي دِي او ورنہ پہ ډډہ شئِ ۱۸ ځکہ چہ دَ دغو پہ شان دَ
خداوند مسیح غلامِي نہ کوِي بلکہ دَ خپلو کیډو او پہ خوږو اوښو خبرو دَ
۱۹ بِي عیبو زړونہ غولوِي ۱۹ ځکہ چہ ستاسي فرمان برداري ټولو تہ رسیدلي دہ
لہ دي سببہ زہ لہ تاسي نہ خوشحالیږم لیکن ارادہ لرم چہ تاسي پہ نیکِي کښ
۲۰ دانایان او پہ بدئِ کښ سادہ اوسئِ ۲۰ او دَ صلحي الله بہ زر شیطان ستاسي
تر پښو لاندِ ومږِي
ځمونږ دَ خداوند یسوع مسیح فضل دِ لہ تاسي سرہ وِي
۲۱ ۲۱ ځما همکاران طمطاوُس او ځما خپلوان لوقا او یاسون او سوسیپترُس
۲۲ تاسي تہ سلام وایِي ۲۲ زہ طرتیوس چہ کاتب دَ دي خط یم پہ خداوند کښ
۲۳ تاسي تہ سلام وایم ۲۳ کائِس چہ ځما او دَ ټولي کلیسیي میلمستیا کونکي
۲۴ دي تاسي تہ سلام وایِي اراستَس خزانچي دَ ښهر ۲۴ او قوارتُس ورور
تاسي تہ سلام وایِي
۲۵ ۲۵ اوس هغہ تہ چہ ستاسي پہ ټینګولو قادر دي موافق پہ انجیل
ځما او دَ یسوع مسیح پہ وعظ کولو موافق لہ ظاهریدلو دَ هغہ راز چہ لہ قدیمي
۲۶ زمانو پټ وہ ۲۶ لیکن اوس ښکارہ شہ او دَ نبیانو دَ کتابونو پہ وسیلي
موافق پہ حکم دَ ازلي الله دَ ایمان دَ تابعدارئِ دَ پارہ پہ ټولو غیر قومونو
۲۷ کښ مشهور شوي ۲۷ هغہ واحد حکیم الله تہ دِ پہ وسیلي دَ یسوع مسیح
تر ابدہ پوري تمجید وِي آمین ❊

# اول خطِ دَ پولس رسول و قورنتيانو ته

## اوّل باب

١ پولس بللي شوي رسول دَ يسوع مسيح په ارادي دَ اَلله او سوستنيس ورور ١
٢ هغې کليسيي دَ الله ته چه په قورنت کښ ده هغو مقدّسانو ته په مسيح ٢
يسوع کښ هغو بلليو شويو مقدّسانو ته سره له هغو ټولو چه په هر ځاي
کښ ځموږ دَ خداوند يسوع مسيح نوم بولي دَ هغو او ځموږ ٣ فضل تاسو ته ٣
او سلامتي له اَلله پلار ځموږ نه او له خداوند يسوع مسيح نه
٤ زه خپل الله ته شکر کوم په هر وقت کښ ستاسو دَپارَ په سبب ٤
دَ هغه فضل دَ الله چه په يسوع مسيح کښ تاسو ته درکړي شه ٥ چه تاسي ٥
په هر څيز کښ په هغه کښ غنيان شوي يئ په ټول کلام او په ټول علم کښ-
٦ لکه چه شاهدي دَ مسيح په تاسي کښ ثابته شوه ٧ تر دې چه تاسو په هيڅ ٦ ٧
بخښ کښ وروسته نه يئ او ځموږ دَ خداوند يسوع مسيح دَ ظاهريدلو
منتظر يئ ٨ هغه چه تاسي به تر آخره پورې هم ثابت کړي بې ملامتيا په ٨
ورځې ځموږ دَ خداوند يسوع مسيح کښ ٩ اَمين هغه اَلله دَی چه د ده ٩
په وسيلې سره دَ خپل زوي يسوع مسيح خداوند ځموږ و شراکت ته بللي شوي
يئ

١٠ نو اي ورونړو زه تاسو ته سوال کوم په وسيلې دَ نوم ځموږ دَ خداوند ١٠
يسوع مسيح چه تاسي ټول هم هغه يوه خبره کوئ ستاسو په مينځ کښ دِ
شليدون نه وي بلکه هم په هغه يوه ذهن او په هغه يوه فکر کښ اوسئ
١١ ځکه چه زه ستاسي په حق کښ اي ورونړو دَ خلوئ له خلقو نه خبر شوي ١١
يم چه ستاسي په مينځ کښ جګړي شته ١٢ غرض م دا دې چه هر يو له تاسو ١٢
وايي چه زهِ دَ پولس او زه دَ اپلوس او زه دَ کيفا او زه دَ مسيح يم ١٣ کنه ١٣
مسيح ويشلي شوي دَی څه؟ يا کنه پولس ستاسو دَپار په صليب شه

۱۴ څه ؟ يا تاسو دَ پولس په نوم بپتسما شوئ څه ؟ ۱۴ زه دَ اَللّٰه شکر کوم چه ما
۱۵ بي له کرسپس او له گايوس نه يو له تاسي بپتسما نه کړ ۱۵ تا چه څوک دِ
۱۶ و نه وايي چه تاسو څما په نوم بپتسما شوي وئ ۱۶ او دَ استيفان کور ته هم
ما بپتسما ورکړه نور نه پوهيږم چه بل چا ته به مِ بپتسما ورکړي وِي -
۱۷ ۱۷ څکه چه زه مسيح بپتسما ورکولو ته نه يم راستولئ بلکه انجيل ورکولو
ته نه په حکمت دَ کلام هسي نه چه صليب دَ مسيح ناکاره شي
۱۸ ۱۸ څکه چه کلام دَ صليب په نزد دَ هلاکيدونکو اِحمقي دَه ليکن څمونږ
۱۹ خلاصيدونکو په نزد قدرت دَ اَللّٰه دي ۱۹ څکه چه ليکلي شوي دِي چه

زه به حکمت دَ حکيمانو هلاک کړم

او فهم دَ فهمدارانو به نابود کړم

۲۰ ۲۰ چرته دي حکيم چرته دي کاتب چرته دي بحث کونکي دَ دي زماني گنرِه اَللّٰه
۲۱ دَ دې عالم حکمت احمقي جوړه کړي نه ده څه ؟ ۲۱ دي دَ پارَ هرکله چه دَ
اَللّٰه په حکمت سره عالم دَ خپل حکمت په وسيلي اَللّٰه و نه پيژاندنو دَ اَللّٰه
دا بنه خوښه شوه چه مؤمنان دَ وعظ دَ احمقي په وسيلي خلاص کړي -
۲۲ ۲۳ ۲۲ څکه چه يهوديان نخښې غواړي او يونانيان حکمت لټوي ۲۳ ليکن مونږ
په مصلوب شوي مسيح وعظ کوو چه دَ يهوديانو دَ پارَه بدري او دَ يونانيانو
۲۴ دَ پارَ احمقي ده ۲۴ مگر بللو شوو ته هم يهوديانو ته هم يونانيانو ته مسيح دَ اَللّٰه
۲۵ قدرت او دَ اَللّٰه حکمت ۲۵ څکه چه احمقي دَ اللّٰه له انسانه زياته حکمتي
دَه او ضعيفي دَ اَللّٰه له انسانه زياته قوتناکه ده
۲۶ ۲۶ پس اي ورونړو په خپلي بلني نظر وکړئ چه په نسبت دَ جسم
۲۷ ډير حکيمان نشته او ډير قدرتناک نشته او نه ډير اشراف شته ۲۷ بلکه
اَللّٰه احمق څيزونه دَ عالم غوره کړي دِي تا چه حکيمان شرمنده کړي او
اَللّٰه ضعيف څيزونه دَ عالم غوره کړل تا چه قوتناک څيزونه شرمنده
۲۸ کړي ۲۸ او اَللّٰه ادنیٰ څيزونه دَ عالم او ناکاره غوره کړي دِي او غيرموجود
۲۹ څيزونه تا چه موجود څيزونه باطل کړي ۲۹ تا چه هيڅ جسم دَ اَللّٰه دَ وړاندِ

٣٠ فخر و نه کړي ٣٠ ليکن تاسي له هغه نه په يسوع مسيح کښ يئ چه څمونږ
٣١ دَپارَ له اَلله نه حکمت او صداقت او قدوسيت او فديه شه ٣١ تا لکه چه
ليکلي شوي دِي چه هغه څوک چه فخر کوي په خداوند دِ فخر کوي ۞

# دويم باب

١ ١ او زه چه تاسي ته درغلم اي ورونړو نه په لويئ دَ کلام او دَ حکمت درغلم
٢ مناديِ کونکي تاسو ته په راز دَ اَلله ٢ څکه چه ما نيت و نه کړ چه ستاسي
په مينځ کښ څه شي وپيژنم بي له يسوع مسيح نه او هغه مصلوب شوي -
٣ ٣ او زه په ضعيفي او په ويري او په ډيري لړزي کښ ستاسي سره شوم
٤ ٤ او زما کلام او زما وعظ نه په لمسونکي کلام دَ حکمت بلکه په دليل دَ
٥ روح او دَ قدرت ٥ تا چه ستاسي ايمان دَ انسان په حکمت کښ نه وِي
بلکه په قدرت دَ اَلله

٦ ٦ ليکن مونږ دَ کاملانو په مينځ کښ په حکمت سره خبري کوو مګر نه
٧ په حکمت دَدي زماني او نه دَدي زماني دَ سردارانو چه ورکيدونکي دِي ٧ بلکه مونږ حکمت
دَ اَلله په راز کښ وايو هغه چه پټ وه چه اَلله وړاندِ له زمانو نه زمونږ
٨ دَ جلال دَپارَ معين کړي وه ٨ هغه چه دَدي زماني له سردارانو هيچا ونه پيژانده
څکه چه که هغه ئې پيژاندلي وي نو خداوند دَ جلال به ئې نه وه په صليب
٩ کړي ٩ بلکه لکه چه ليکلي شوي دِي

هغه څيزونه چه نه سترګو وليدل او نه غوږونو واوريدل
او نه دَ سړي په زړه کښ تير شول
هغه څيزونه چه اَلله دَ هغو دَپارَ چه محبت ورسره لري تيار کړل

١٠ ١٠ ليکن اَلله په مونږ دَ روح په وسيلي مکشوف کړل څکه چه روح ټول څيزونه
١١ تفحص کوِي هو دَ اَلله ژوري هم ١١ څکه کوم سړي دَي چه دَ انسان څيزونه
پيژني مګر روح دَ هغه سړي چه په ده کښ دَي هم هسي څيزونه دَ اَلله
١٢ هيڅوک نه پيژني مګر روح دَ اَلله ١٢ ليکن مونږ دَ عالم روح اخستي نه دَي بلکه
هغه روح چه له اَلله دَي تا چه مونږ هغه څيزونه چه اَلله را عنايت کړي

١٣ دِيَ وِيېژنو ١٣ هغه څيزونه چه مونږ ئي وايُو نه دَ انساني حکمت په ښووليو
خبرو بلکه دَ رُوحُ القدس په ښووليو روحاني څيزونه په روحاني څيزونو
١٤ مشابه کوُو ١٤ مگر نفساني سړي دَ اَللّٰه دَ روح څيزونه نه قبلوي ځکه چه
هغه دَده په نزد احمقي دِي او نه توانيږي چه وئي پيژني ځکه چه حکم دَ هغو
١٥ په روحاني طور سره کيږي ١٥ ليکن روحاني (سړي) دَ ټولو څيزونو حکم کوِي
١٦ ليکن په هغه کښ دَ هيچا حکم نه کيږِي ١٦ ليکن چا دَ خداوند ذهن پيژاندلي
دي چه وئي ښيِي مگر مونږ دَ مسيح ذهن لرُو

# دريم باب

١ ١ او زه اي وروڼړو نه توانيدم چه له تاسي سره خبري وکړم لکه له روحانيانو
٢ بلکه لکه له جسمانيانو لکه له ماشومانو سره په مسيح کښ ٢ ما په تاسي
پئِ وڅښلي نه خوراک ولي چه تاسي نه توانيدئِ بلکه لا اوس هم طاقت نه لرئِ
٣ ٣ ځکه چه لا تر اوسَ پوري جسمانيان يئْ ولي هرکله چه په تاسي کښ غيرت
٤ او جګړه شته نو کنړه جسماني نه يئِ او په انساني طور نه گرزيږئِ څه؟ ٤ ځکه
هرکله چه څوک وايِي چه زه دَ پولس يم او بل چه زه دَ اپلوس يم تاسي
٥ جسمانِي نه يئْ څه؟ ٥ پولس څوک دَي او اپلوس څوک دَي مگر خدمتکاران
چه د هغو په وسيلي تاسي ايمان راوړ لکه چه حداوند هر يوه ته ورکړ
٦ ٦ ما ولګوله او اپلوس اوبه کړه مگر اَللّٰه زياتوالي ورکړ پس لګونکي هيڅ نه دي
٧ او اوبه کونکي هيڅ نه دَي مگر اَللّٰه چه زياتوالي ورکونکي دَي ٨ ليکن لګونکي او
اوبه کونکي يو دِي او هر يو به خپل اجر په برابري دَ خپل محنت واخلِي ـــ
٩ ٩ ځکه چه مونږ له اَللّٰه سره همکاران يُو تاسي دَ اَللّٰه کښت دَ اَللّٰه عمارت يئِ
١٠ ١٠ ما دَ اَللّٰه دَ فضل په موافق چه راکړي شه دَ دانا معمار په شان بنياد
کيښود او بل په هغه باندِ بنا کوِي ليکن هرڅوک دِ وګورِي چه څرنګ بنا ورباندِ
١١ کوِي ١١ ځکه چه هرڅوک نه توانيږِي چه بل بنياد کيږدِي بي له هغه چه ايښي
١٢ شوي دَي يعني يسوع مسيح ١٢ او که چري څوک په هغه بنياد له سرو زرو يا
١٣ له سپينو يا له جواهرو يا له لرګيو يا له واښو او يا له بوسو بنا وکړي ١٣ نو

دَ هر یوه کار به ښکاره ښِي ځکه چه هغه ورځ به دي ځرګنده کړِي ځکه
چه هغه په اور سره ښکاره کیږِي. او اور به په خپله دَ هر چا کار و آزمایِي
چه څرنګ دَي ۱۴ که چرِي دَ چا کار چه بنا کړِي ئِي وِي پاتِي ښِي نو اجر به ۱۴
واخلِي ۱۵ او که چرِي دَ چا کار وسوزِي نو نقصان به ئِي بیاموِي مګر په خپلَ ۱۵
به خلاص ښِي لیکن لکه دَ اور په وسیلي سره
۱۶ تاسو نه پوهیږِئ چه تاسي بیت الله یئِ او روح دَ اُلله په تاسي ۱۶
کښِ اوسِي ۱۷ که څوک بیت الله خرابوِي هغه به الله خراب کړِي ځکه چه بیت الله ۱۷
مُقدّس دي او هغه تاسي یئِ
۱۸ هیڅوک دِ خپل ځان و نه غولوِي که څوک له تاسي نه په دي زمانِي ۱۸
کښِ خپل ځان حکیم ګڼزِي نو احمق دِ ښِي تا چه حکیم ښِي ۱۹ ځکه چه حکمت ۱۹
دَ دي عالم په نزد دَ اَلله احمقِي ده لکه چه لیکلِي شوِي دِي هغه چه حکیمان
دَ دوی په مکرونو کښِ نیسِي ۲۰ او بیا خداوند دَ حکیمانو فکرونه پیژنِي چه ۲۰
باطل دِي ۲۱ پس هیڅوک دِ په سړیو فخر نه کوِي ځکه چه ټول څیزونه ستاسي ۲۱
دِي ۲۲ که پولس دَي که اپلوس که کیفا که عالم که ژوندون که مرګ که ۲۲
حاضر څیزونه که راتلونکِي څیزونه ټول څیزونه ستاسي دِي ۲۳ او تاسي ۲۳
دَ مسیح او مسیح دَ اَلله دي ❊

# څلورم باب

آ سړي دِ مونږ داسي وګڼزِي لکه خدمتګاران دَ مسیح او ناظران دَ رازونو ۱
دَ اَلله ۲ دلته هم په ناظرانو کښِ دا دریافت کیږِي تا چه څوک امانت‌دار ۲
و موندلي ښِي ۳ لیکن ځما په نزد دا لږه خبره دَه چه له تاسو یا دَ سړو ۳
له ورځِي نه حکم کړِي شم بلکه زه په خپل ځان هم حکم نه کوم ۴ ځکه چه ۴
زه په خپل ځان کښِ هیڅ نه وینم لیکن په دي سره صادق کیدلي نه شم
بلکه هغه چه په ما کښِ حکم کوِي خداوند دَي ۵ پس وړاندِ له وقت نه ۵
هیڅ حکم مه کوئِ تر څو پورِي چه هغه خداوند را نه ښِي چه پټ څیزونه
دَ تیارِي به هم روښانه کړِي او مصلحتونه دَ زړونو به ځرګند کړِي او بیا به

هر يوه لره ستاينه له الله وشي
٦ ٦ او دا څيزونه مې اي ورونړو ستاسو دَپارَ په خپل ځان او په اپلوس
تشبيه کړي دِي تا چه تاسي په مونږ کښ زده کړئِ چه له هغه نه چه ليکلي
شوي دِي زياتوب و نه کړئِ تا چه هيڅوک دَ يوه دَپارَ په بل و نه پړسيږي
٧ ٧ څکه چه څوک به ستا تميز وکړي او ته څه لري چه وا دِ نه خست
٨ نو چه وا دِ خست بيا ولي فخر کوئِ لکه چه اخستلي دِ نه وِي ٨ اوس خو
تاسو ماړه يئِ او غنيان يئِ بي له مونږ نه مو بادشاهي کړي ده او کاشکي
چه تاسي بادشاهي وکړئِ تا چه مونږ هم له تاسو سره بادشاهي وکړو -
٩ ٩ څکه چه زه وينم چه الله مونږ رسولان وروستو ښکاره کړي يُو لکه چه
دَ مرګ صدقه شوي ولي چه مونږ دَ عالم او دَ فرښتو او دَ سړيو دَپارَ
١٠ تماشاګاه شولو ١٠ مونږ دَ مسيح دَپارَ احمقان يُو ليکن تاسي په مسيح کښ
عقلمند يئِ مونږ ضعيفان ليکن تاسي قوت‌ناک يئِ تاسي عزتمند ليکن مونږ
١١ بي‌عزته يُو ١١ مونږ تر دي ساعتَ پوري وږي او تږي او برمنډ او په څپيړو
١٢ وهلي يُو او استوګنه نه لرُو ١٢ او په خپلو لاسونو کارکونکي مشقت کوو ښکنځلي
١٣ شوي برکت غواړُو زيرولي شوي زغم کُوو ١٣ بهتان لګولي شوي دُعا کُوو مونږ
لکه ګندګي دَ عالم شولو او خيري دَ هر څيز تر اوسَ پوري
١٤ ١٤ زه دا ستاسي دَ شرمنده کولو دَپارَ نه ليکم بلکه دَ خپلو محبوبو
١٥ فرزندانو په شان مو آګاه کوم ١٥ اګر که تاسي په مسيح کښ په زرګونو اُستادان
لرئِ مګر ډير پلرونه نه لرئِ څکه چه ما په يسوع مسيح کښ دَ انجيل په سبب
١٦ ١٧ تاسي و زيږولئِ ١٦ او زه تاسي ته التماس کوم چه څما مقتديان شئِ ١٧ دي
دَپارَ مې تاسو ته طمطاوس درواستاوه چه څما عزيز فرزند په خداوند کښ
امانت‌دار دي چه دغه به څما لاري چه په مسيح کښ دي در په ياد کړي لکه
١٨ چه زه ئي په هر ځاي په هري کليسيا کښ تعليم کوم ١٨ نو څنې پړسيدلي
١٩ دِي چه زه تاسو ته درتلونکي نه يم ١٩ ليکن که دَ خداوند اراده وي زر به
٢٠ درشم او معلوم به کړم نه دَ پړسيدلو کلام بلکه قدرت دَ هغو ٢٠ څکه چه

بادشاهي دَ الله نه په کلام کښ بلکه په قدرت کښ ده ٢١ تاسي څه پوهيږئ ٢١
کنړه تاسو ته له همسا سره درشم يا په محبّت او په روح دَ حليمي کښ ÷

# پنځم باب

١ مطلق اوريدلي کيږي چه ستاسي په مينځ کښ زنا شته او داسي زنا چه ١
په غير قومونو کښ لا نشته نزدي چه يو سړي دَ خپل پلار ښځه ولري
٢ او تاسي پړسيدلي يئ او زيات ويرمو و نه کړ تاچه هغه چه دا کار ئي ٢
کړي وه ستاسي له مينځَ دِ واخستلي شي ٣ چه زه په حقيقت سره په جُسم ٣
سره غائب ليکن په روح کښ حاضر اوس مِ حکم وکړ لکه چه زه حاضرم
په هغه چه دا کار ئي داسي کړي دي ٤ څمونږ دَ خداوند يسوع مسيح په ٤
نوم چه تاسي جمع کيدونکي يئِ او ځما روح څمونږ دَ خداوند يسوع په قدرت
سره يو ځاي شوي چه ٥ دا هسي کښ وشيطان ته دَ جُسم دَ هلاکت دَپارَ ٥
و سپارلي شي تاچه روح ئي دَ خداوند په ورځ کښ خلاص شي ٦ ستاسي ٦
فخر ښائسته نه دَي کنړه تاسي نه پوهيږئ چه لږ څه خميره ټوله پيړه خميره
کړي ٧ زړه خميره پاکه کړئِ تاچه تاسي نوي پيړه شئِ لکه چه تاسي بي خميري ٧
يئِ ځکه چه فصح څمونږ مسيح هم قرباني شوي دَي ٨ نو مونږ دِ عيد وکړو ٨
نه په زړي خميري او نه دَ بدي او دَ شرارت په خميري سره بلکه په ناخميري
دَ حق او دَ اخلاص

٩ ما په هغه خط کښ تاسي ته وليکل چه له زانيانو سره ګډون مه کوئِ ٩
١٠ ليکن نه بالکل دا چه له زانيانو دَ دي عالم سره يا له حريصانو يا له ١٠
شوکونکو يا له بُت‌پرستانو سره او که نه نو لازم به شي چه له عالم نه ووزئِ
١١ مګر اوس مِ تاسو ته وليکل چه ګډون مه کوئِ که څوک چه ورور ١١
بللي شي زناکار يا حريص يا بت‌پرست يا ښکنځونکي يا شرابي يا شوکونکي وي
نو له داسي کس سره ډوډئِ هم مه خورئِ ١٢ ځکه چه ځما څه دِي چه ١٢
په هغو چه باهر دِي حکم وکړم کنړه تاسي په هغو چه دننه دِي حکم نه کوئِ
١٣ ليکن په هغو چه دَ بهر دِي الله حکم کوي نو هغه بد له خپل مينځه نه وباسئِ ÷ ١٣

# شپږم باب

١ ١ څوک له تاسي نه چه له بل چا سره دعوىٰ لرِي دا جرأت کوِي چه دَ
فيصلي دَپارَ عدالت ته دَ بيدينانو دَ وړاندِ ورشِي نه دَ پاکانو دَ وړاندِ
٢ ٢ يا تاسي نه پوهيږئِ څه ؟ چه پاکان به په عالم حکم وکړِي پس هرکله چه
عالم له تاسي نه حکم مومِي نو کنزه تاسي دَ ورو ورو فيصلو لايق نه يئِ
٣ څه ؟ ٣ تاسي نه پوهيږئِ چه مونږ به په فرښتو حکم وکړُو نو لا څومره زيات
٤ دَ دي ژوندون په څيزونو ٤ پس که تاسي د دي ژوندون په څيزونو کښ
فيصلي لرئِ نو تاسي هغه خلق کښينوئِ چه په کليسيا کښ ناکسان کنړلي
٥ شِي ٥ زه تاسي ته دَ شرمولو دَپارَ وايم دا هسي دَه څه ؟ چه ستاسي په
مينځ کښ يو دانا هم نشته چه دَ خپلو وروڼرو په مينځ کښ دَ حُکم کولو
٦ قابل دَي ٦ ليکن ورور له ورور سره دعوي کوِي او دا هم دَ بي ايمانو دَ
٧ وړاندي ٧ نو دا اوس بالکل په تاسي کښ عيب دَي چه يو له بل سره
٨ دعوي لرئِ ولي زيات ظلم نه اخلئِ ولي زيات نه دروهيږئِ ٨ بلکه تاسي ظلم
٩ او دروه کوئِ او دا هم له وروڼرو سره ٩ کنزه تاسي نه پوهيږئِ چه ظالمان
به دَ بادشاهئِ دَ الله وارثان نه شِي مه غوليږئِ نه به زانيان او نه به
بت‌پرستان او نه به فاسقان او نه به نرښځان او نه به څملاستونکي دَ نرانو
١٠ ١٠ او نه به غلونه او نه به حريصان او نه به کيفيان او نه به بنکنځونکي او
١١ نه به شُوکونکي وارثان دَ بادشاهئِ دَ الله شِي ١١ او ځني په تاسي کښ داسي
وُو مگر تاسي وينځلي شوئِ بلکه پاک شوئِ او صادقان شوِي يئِ په نوم
دَ خداوند يسوع او څمونږ دَ الله په روح

١٢ ١٢ هرڅه څما دَپارَ روا دِي مگر ټول څيزونه نه موافق کيږي ټول
څيزونه ما ته روا دِي ليکن زه به دَ هيڅ څيز په اختيار کښ را نه شم-
١٣ ١٣ خوراک دَ کيډي دَپارَ او کيډه دَ خوراکونو دَپارَ ليکن الله به هم دغه هم
هغه نيست کاندِ ليکن جُسّه نه دَ زنا دَپارَ بلکه دَ خداوند دَپارَ او خداوند
١٤ دَ جُسّي دَپارَ ١٤ او الله خداوند ژوندي پورته کړ او مونږ به هم په خپل

١٥ قدرت سره ژوندي پورته کړي ١٥ تاسي نه پوهيږئ څه ؟ چه جُسّي ستاسي
دَ مسيح اندامونه دِي نو کنږه زه به دَ مسيح اندامونه واخلم او دَ زانيي اندامونه
١٦ به ئي کړم هسي دِ نه وِي ١٦ يا تاسي نه پوهيږئ چه هغه څوک چه له زانيي
سره پيوست شه نو سره يو جُسّه شول څکه چه هغه وائي چه دواړه به سره
١٧ يو جسم شي ١٧ ليکن هغه چه له خداوند سره پيوست شه نو سره يو روح
١٨ دَي ١٨ له زنا وتښتئ هره خطا چه سړي ئي کوي له جُسي باهر ده ليکن زاني
١٩ په خپلي جُسي کښ خطا کوي ١٩ يا تاسي نه پوهيږئ څه ؟ چه جُسي ستاسي بيت
دَ روح القدس دي هغه چه په تاسي کښ دَي هغه چه تاسي ئي له الله لرئ
٢٠ او تاسي دَ خپلو څانونو نه يئ ٢٠ څکه چه تاسي په قيمت سره پيرودلي شوي
يئ نو الله ته په خپلو جُسو کښ تمجيد وکړئ +

## اوم باب

١ ١ دَ هغو خبرو په باب چه تاسي وليکلي سړي ته دا ښه دَه چه ښځه دِ نه مسه
٢ کړي ٢ ليکن له سببَ دَ زناکاريو هر سړي دِ خپله ښځه لري او هره ښځه دِ
٣ خپل سړي لري ٣ او سړي دِ ښځي ته دَدي حق ورکړي او هم هسي ښځه دِ
٤ خپل سړي ته ٤ ښځه دَ خپل څان اختيار نه لري مګر سړي هم هسي سړي په
٥ خپل څان اختيار نه لري مګر ښځه ٥ تاسي دِ يو له بل دروه و نه کړئ بي له
دي چه څو مُده دَ دواړو په رضا سره وِي تا چه د دَعا دَپارَ وزګار شئ او بيا
سره په يو ځاي شئ تا چه هغه شيطان مو ستاسي دَ ناپرهيزکاري په سبب
٦ ٧ و نه ازمائي ٦ نو دا په طور دَ اذن سره وايم نه په طور دَ حکم ٧ زه اراده لرم
چه ټول سړي دِ داسي وِي لکه چه زه مګر هر څوک له الله نه خاص فضل
لري يو خو داسي بل خو هسي

٨ ٨ نو زه بي واده او کوندو ته دا وايم چه دَ دوي دَپارَ ښه ده چه هسي دِ
٩ اوسي لکه زه ٩ ليکن که پرهيزکولي نه شي نو نکاح دِ وکړي څکه چه نکاح کول
١٠ له سولو بهتر دي ١٠ ليکن نکاح کړو شوو ته حکم کوم نه زه بلکه هغه خداوند
١١ چه ښځه دِ له خپل سړي نه بيله نه شي ١١ او که بيله شوه نو بي نکاح دِ پاتي

شِي يا له هغه سړي سره دِ پخولا شِي او سړي دِ خپله ښځه نه پرېږدي
۱۲ ۱۲ مګر نورو ته زه وايم نه هغه خداوند كه چرې يو ورور ناموُمنه ښځه لرِي
۱۳ او دا له هغه سره په اوسيدلو راضِي وِي نو هغه دِ نه شړي ۱۳ او هغه
ښځه چه ناموُمن سړي لرِي او دَي له هغې سره په اوسيدلو راضِي وِي
۱۴ نو دا دِ هغه سړي نه شړِي ۱۴ ځكه چه هغه ناموُمن سړي په هغې ښځې
كښ پاكيږي او هغه ناموُمنه ښځه په هغه ورور كښ پاكه شوي ده او
۱۵ كه نه نو ستاسي فرزندان به ناپاک وِي مګر اوس پاک دِي ۱۵ ليكن كه
ناموُمن بيل شِي نو بيل دِ شِي چه هغه ورور يا خور په داسي حال بند
۱۶ شوِي نه دِي ليكن اَلله موږ صلحي ته بللِي يوُ ۱۶ ځكه څه پوهيږي اي ښځې
چه ته به خپل سړي خلاص كړي يا ته څه پوهيږي اي سړيه چه خپله
۱۷ ښځه به خلاصه كړي ۱۷ بي له دي چه خداوند هر يوه لره ويشلي دي لكه
چه اَلله هر يو بللي دَي هسي دِ وګرزي او په وارو كليسيو كښ داسي
امر كوم ځوک چه په مختونِي كښ وبللي شه نامختون دِ نه شِي ځوک چه په
۱۸ نامختونِي كښ وبللي شه مختون دِ نه شِي ۱۸ ختنه هيڅ نه ده او نامختونِي هيڅ
۱۹ نه ده بلكه ساتنه دَ حكمونو دَ اَلله ۱۹ هر يوه په كومه بلنه چه په كښ وبللي
۲۱ شه په هغه كښ دِ پاتي شِي ۲۱ كه ته په غلامِي كښ وبللي شوي نو تا لره
دِ باک نه وِي ځكه كه دِ توان وِي چه ته آزاد شي هغه لا زياتَ استعمال
۲۲ كوه ۲۲ ولي هغه مريي چه په خداوند كښ وبللي شه هغه آزاد شوي په
۲۳ خداوند كښ دَي هم هسي هغه آزاد بللي شوي مريي دَ مسيح دَي ۲۳ تاسي
۲۴ په قيمت پيرودلِي شوِي يئِ نو دَ سړو مريونه مه كيږئِ ۲۴ هر يو چه
په كښ وبللي شه اي ورونړو په هغه كښ دِ دَ الله سره اوسِي
۲۵ ۲۵ ليكن دَ پيغلو په باب كښ هيڅ حكم دَ خداوند نه لرم ليكن زه
راي وركوم لكه هغه چه په خداوند كښ رحم موندلي چه امانت‌دار دِ
۲۶ وِي ۲۶ نو زه فكر كوم چه دا ښه ده په سبب دَ حاضري تنګسيا سړي لره
۲۷ دا ښه ده چه دا هسي دِ وِي ۲۷ ته له ښځې سره تړلي شوي يي نو خلاصي

مه غواړه ته له ښځي خلاص شوي يې نو ښځه مه لټوه ٢٨ ليکن که ته نکاح وکړي ٢٨
نو خطا نه کوي او که ته پيغله په نکاح کړي نو خطا دِ کړي نه ده ليکن داسي
کسانو لره به په جسم کښ رېړ وِي مګر زه په تاسي شفقت کوم ٢٩ مګر زه دا ٢٩
وايم اي ورونړو چه اوس وقت لنډ دَي دي دَپارَ هغه خلق چه ښځي لري داسي دِ
وِي لکه چه نه يُ لري ٣٠ او هغوي چه ژاړي لکه هغوي چه نه ژاړي او هغوي چه ٣٠
خوشحالي کوِي لکه هغوي چه خوشحالي نه کوي او هغوي چه پيري لکه هغوي چه مال
نه لري ٣١ او هغوي چه دَدي عالم استعمال کوِي لکه چه هغوي پوره استعمال نه کوِي ٣١
ځکه چه شکل دَدي عالم تيريږي ٣٢ او زه دا غوارم چه تاسي بي اندېښني شئ بي نکاح ٣٢
سړي دَ خداوند په څيزونو کښ فکر کوِي چه څرنګ به خداوند خوشحال کړم ٣٣ ليکن ٣٣
نکاح کړي شوي دَ عالم دَ څيزونو فکر کوِي چه څرنګ به خپله ښځه خوشحاله کړِي
٣٤ او دَ پيغلي او دَ ارتيني په مېنځ کښ فرق دَي بي نکاح شوي ښځه دَ خداوند په ٣٤
څيزونو کښ انديښنه کوِي تا چه په جُسّه او په روح کښ پاکه وِي او هغه په
نکاح کړي شوي ښځه دَ عالم په څيزونو انديښنه کوِي ٣٥ دا زه ستاسي دَ ٣٥
فايدي دَپارَ وايم نه دي دَپارَ چه په تاسي جال واچوم بلکه دَپارَ دَ ښايستګي
او دَ ښه خدمتګذاري دَ خداوند بي پريشانيُ ٣٦ ليکن که څوک دا ګمان کوِي ٣٦
چه زه له خپلي پيغلي سره بي ننګي کوم که هغه خپل دَ ځواني وقت تيروِي او
داسي ضرورت کيږي نو داسي دِ کوِي لکه چه اراده لري هغه خطا نه کوِي
واده دِ ئي کړي ٣٧ او هغه څوک چه په خپل زړه کښ مضبوط ولاړ وِي او ٣٧
حاجت نه لرِي او په خپلي ارادي اختيار لري او په خپل زړه کښ ئي دا
قصد کړي دَي چه خپله پيغله به بي ودولو وساتي ښه کوِي ٣٨ او هغه څوک ٣٨
چه خپله پيغله واده کړي ښه کوِي او هغه څوک چه نه ئي ودوِي ډير ښه کوِي
٣٩ ښځه تر هغه وقت پوري چه سړي ئي ژوندَي دَي تړلي شوي دَه ليکن چه ٣٩
سړي ئي مړ شه نو آزاده ده له هر چا سره چه اراده لري نکاح دِ
وکړي مګر تش په خداوند کښ ٤٠ ليکن خما په پوه کښ ډيره نيکبخته ده ٤٠
که هسي پاتي شي او ګمان کوم چه روح دَ الله هم راځخه دَي ❊

# اتم باب

۱ ۱ او دَ بتانو دَ قربانیو په باب کښې مونږ پوهیږو چه مونږ واړه علم لرُو هغه
۲ علم پړسول کوي لیکن محبّت بنا کوِي ۲ که چرې څوک بنا وکړِي چه دي څه قدر
پوهیږِي نو لکه چه پوهیدل بایده دِي هغه تر اوسَ پورې نه پوهیږِي
۳ ۳ مګر که څوک له الله سره مینه لرِي نو دا دَ هغه په نزد پیژاندلي شوي
۴ دَي ۴ پس دَ بتانو دَ قربانیو دَ خوړلو په باب مونږ پوهیږو چه هیڅ بُت په
۵ عالم کښې نشته او هیڅ خداي نشته مګر یو ۵ څکه چه که هرڅو په
خدایانو نومړِي شته دِي که په آسمان که په زمکه لکه چه خدایان ډیر او
۶ خداوندان ډیر دي ۶ لیکن څمونږ یو الله دَي هغه پلار چه له ده ټول څیزونه
او مونږ ده لره او یو خداوند یسوع مسیح هغه چه دده په وسیلې ټول
۷ څیزونه او مونږ دَده په وسیلې ۷ لیکن په ټولو کښې هغه علم نشته بلکه
ځني تر اوسَ پورې په عادت دَ بت داسې خوراک کوِي لکه قربانِي دَ بت او تمیز
۸ دَدوِي ضعیف شوي پلیتیږِي ۸ لیکنُ خوراک به مونږ و الله ته پیش نه کړِي
۹ چه که و نه خورو نو نه کمیږُو او که وخورو نو نه زیاتیږُو ۹ لیکن ګوري هسې
۱۰ نه چه دا ستاسې اختیار دَ ضعیفانو دَپارَ یو بند شِي ۱۰ څکه چه که څوک
تا لره چه علم لري په بتخانې کښې ناست وویني نو تمیز دَ هغه چه ضعیف
۱۱ دَي دَ بُتانو په قربانیو خوړلو به قوِي نه شِي څه ؟ ۱۱ او ستا دَ علم په سبب
به هغه ضعیف هلاک شِي هغه ورور چه مسیح دَ هغه دَپارَ مړ شه ۱۲ او
۱۲ هسې چه په وروڼو خطا وکړئِ او دَ دوي ضعیف تمیزونه ژوبل کړئِ نو
۱۳ په مسیح خطا کوئِ ۱۳ له دي سببَ که خوراک څما ورور ته بُدرِي ورکوِي
نو زه به تر ابده پورې غوښه و نه خورم هسې نه چه خپل ورور ته بُدرِي
ورکړم ÷

# نهم باب

۱ ۱ زه آزاد نه یم څه ؟ زه رسول نه یم ؟ ما یسوع مسیح خداوند څمونږ لیدلي
۲ نه دَي او ناسې په خداوند کښې څما عمل نه یې څه ؟ ۲ که چرې نورو لره

رسول نه یم لیکن تاسو ته رسول یم ځکه چه تاسي په خداوند کښ ځما په
رسولۍ مُهر يئِ ٣ دا ځما حجّت دَي هغو ته چه ځما تحقيق کوِي ٤ کښِ مونږ ٣ ٤
لره اختيار نشته چه وخورو او وڅښو ٥ او ځمونږ اختيار نشته چه يوه ښځه
په خور نيولي راسره بوزو لکه چه نور رسولان او ورونړه دَ خداوند او کيفا
٦ يا تش زه او برنباسْ اختيار نه لرُو چه محنت ونه کړو ٧ څوک دَي چه په ٦ ٧
خپل مواجب سره کله جنګ نه ځي څوک دَي چه دَ انګورو باغ لګئِ وِي او ميوه
ئِ نه خورِي او څوک دي چه رمه څروِي او پئِ نه خورِي ٨ کښِ دا خبرِي دَ سړي ٨
په شان وايم يا کښِ توريت هم دا نه وائِي څه ٩ ځکه چه دَ موسيٰ په توريت ٩
کښ ليکلي دِي چه دَ غوبل کونکي غوايه خوله مه ترِه کښِ اَللّٰه دَ غوايانو پروا
لرِي څه ١٠ يا دا بالکل ځمونږ دَپارَ وائِي څه هو ځمونږ دَپارَ وليکلي شول ١٠
ځکه چه بايده دي چه يوه کونکي دِ په اميد سره يوه کوِي او هغه غوبل
کونکي دَ خپل اميد په شريکيدلو کښ ١١ که مونږ تاسي ته روحانِي څيزونه ١١
وکرل نو که چرِي ستاسي جسمانِي څيزونه وريبو نو دا لويه خبره ده څه ١٢ که چرِي ١٢
نور په تاسو دَدي اختيار شريکان دِي نو مونږ زيات نه يُو څه لیکن مونږ
په دي اختيار کښ استعمال و نه کړ بلکه دَ وارو څيزونو زغم کوُو هسي
نه چه مونږ انجيل دَ مسيح ته پريکونه ورکړو ١٣ تاسي نه پوهيږئِ چه ١٣
هغه چه په پاکو څيزونو کښ عمل کوِي له بيت المقدّس خورِي او هغوي چه
دَ مذبح خدمت کوِي دَ مذبح شريکان دِي ١٤ هم هسي خداوند امر وکړ هغوي ١٤
ته چه دَ انجيل زيري ورکوِي له انجيل نه به ژوندون کوِي ١٥ ليکن ما له ١٥
دغو نه هيڅ استعمال نه کړ او نه مِ دا وليکل تا چه په ما کښ دا وشِي ځکه
چه له دي نه ما ته مړيدل بهتر دِي چه څوک ځما فخر باطل کړِي ١٦ ځکه چه ١٦
که زه زيري دَ انجيل کوم نو هيڅ فخر مِ نشته ځکه چه په ما باندي ضرورت
يښي شوي دَي هَي په ما باندي چه که زيري دَ انجيل ور نه کړم ١٧ ځکه چه ١٧
که دا کار په رضا سره وکړم نو ما لره اجر شته او که په نارضا وِي نو زه په
مختاري سپارلي شوي يم ١٨ پس اجر ځما څه دَي دا دَي چه زيري دَ انجيل ورکوم ١٨

نِو انجيل بي له خرڅه کړم تا چه خپل اختيار په انجيل کښ ناحق استعمال
١٩ نه کړم ١٩ ځکه چه اگر که زه له ټولو نه آزاد يم مگر خپل ځان مِ دَ ټولو
٢٠ سړي کړ تا چه اکثر خلق پړي وگټم ٢٠ او زه په يهوديانو کښ يهودِي غوندي
شوم تا چه يهوديان وگټم او په شريعتيانو کښ شريعتي شوم تا چه شريعتيان
٢١ وگټم ٢١ او له بي شرعو سره لکه بي شرعي شوم اگر که دَ الله په نزد بي شرعي
٢٢ نه وم بلکه دَ مسيح تر شرعي لاندي تا چه بي شرعي وگټم ٢٢ ضعيفانو ته ضعيف
شوم تا چه ضعيفان وگټم دَ ټولو دَپارَ ټول څه شوي يم تا چه په هر حال
٢٣ سره څني خلاص کړم ٢٣ او دا واړه دَ انجيل دَپارَ کوم تا چه زه په هغه کښ شريک
٢٤ شم ٢٤ کنږه تاسي نه پوهيږئ چه هغوي چه په منډه زغلي ټول زغلي ليکن دَ
٢٥ بري ګونډي يو کس اخلي تاسي داسي وزغلئ تا چه وِئ نيسئ ٢٥ او هرڅوک
چه پهلواني کوي په هرڅه کښ پرهيز کوي هغوي دَ فاني تاج دَ اخستلو دَپارَ ليکن
٢٦ مونږ دَ غير فاني دَپارَ ٢٦ نو زه خو داسي زغلم نه لکه بي يقينه او زه داسي
٢٧ سوک وهم نه لکه باد وهونکي ٢٧ بلکه خپله جُسّه نسکيمندولي او په غلامي کښ
ئي بيايم هسي نه چه نورو ته وعظ کوم او په خپله ترک کړي شم ❊

## لسم باب

١ ١ نو اي ورونړو زه نه غوارم چه تاسي ناخبره شئ چه څمونږ پارونه ټول تر
٢ اوريځي لاندي وُو او ټول په درياب کښ تيريدل ٢ او ټولو په هغي اوريځي او
٣ په هغه درياب کښ دَ موسیٰ بپتسما بياموندٍه ٣ او ټولو هم هغه روحاني
٤ خوراک وخوړ ٤ او ټولو هم هغه روحاني څښاک وڅښنه ځکه چه دوي له
هغي روحاني ږبنه نه چه په دوي پسي تله وڅښنل او هغه ږبنه مسيح وه
٥ ٥ ليکن په هغوي کښ له ډيرو الله راضِي نه وه ځکه دوي په بيابان کښ
٦ واړولي شول ٦ او دا خبري څمونږ دَپارَ نمونه شولي تا چه دَ بديو خواهش کونکي
٧ نه شُو لکه چه هغوي خواهش وکړ ٧ نو بت پرست هم مه شئ لکه چه څني له
هغو وُو لکه چه ليکلي شوِي دِي چه خلق دَ خوړلو او څښلو دَپارَ کښيناستل
٨ بيا لوبو ته پورته شول ٨ او زنا دِ ونه کړو لکه چه څنو له هغو زنا وکړه او په

۹ يوي ورځي دروېشت زره پرېوتل ۹ او دَ خداوند ازمايښت دِ و نه کړو لکه چه
۱۰ ځنو له هغو اَزمايښت وکړ او په نورو مارانو هلاک شول ۱۰ او گونگسي
مه کوئِ لکه چه ځنو له هغو گونگسي وکړل او په هلاکونکو هلاک شول
۱۱ ۱۱ او دا ځيزونه دَ نموني په شان په دوي پېښ شول اوځمونږ دَ نصيحت
دَپارَ وليکلي شول مونږ هغه يُو چه آخرين دَ زمانو را رسيدلي دي —
۱۲ ۱۲ هسي چه هغه څوک چه خپل ځان قايم گڼي گوري دِ چه پري نه وزي
۱۳ ۱۳ هيڅ ازمايښت تاسو وانه خستلئِ مگر انساني ليکن الله هغه اَمين دَي چه
دَي به تاسي پري نه بږدي چه زيات له طاقت نه وازمايلي شئِ بلکه له ازمايښت
سره به دَ وتلو لار هم جوړه کړي تا چه دَ زغم کولو توان ولرئِ
۱۴ ۱۵ ۱۴ نو اي ځما محبوبانو له بت‌پرستي نه وتښتئِ ۱۵ زه هسي وايم لکه
۱۶ دانايانو ته نو تاسي ځما په ويلو کښ انصاف وکړئِ ۱۶ دَ هغه برکت کاسه چه
مونږ برکت پري غواړو گڼره دَ مسيح دَ وينو شراکت نه دَي څه ؟ هغه ډوډئِ
۱۷ چه مونږ ئي ماتوُو گڼره دَ مسيح دَ جُسي شراکت نه دي څه ؟ ۱۷ ځکه مونږ
که هرڅو ډير يُو يوه ډوډئِ او يوه جُسه يُو ځکه چه مونږ ټول په يوی ډوډئِ
۱۸ کښ شريکان يُو ۱۸ هغوي چه په موافق دَ جُسي اسرائيل دَي وگورئِ گڼره
۱۹ هغوي چه قرباني خوړونکي دِي دَ قربانگاه شريکان نه دِي څه ؟ ۱۹ نو زه څه وايم
۲۰ چه قرباني دَ بت څه ځيز ده يا بت څه ځيز دَي ۲۰ بلکه هغه چه غير قومونه
ئي قرباني کوي دَ شيطانانو دَپارَ ئي قرباني کوي نه دَ الله دَپارَ او زه نه غواړم
۲۱ چه تاسي دَ شيطانانو شريکان شئِ ۲۱ تاسي توان نه لرئِ چه دَ خداوند کاسه
وڅښئِ او دَ ديوانو کاسه تاسي نه توانيږئِ چه په خوانچي دَ خداوند او په خوانچي
۲۲ دَ شيطانانو کښ شريکان شئِ ۲۲ گڼره مونږ خداوند غيرتناک کوُو گڼره مونږ
له دَه نه قوتناک يُو څه ؟
۲۳ ۲۳ ټول ځيزونه روا دِي مگر ټول ځيزونه فايده‌مند نه دِي ټول ځيزونه
۲۵ روا دِي مگر ټول ځيزونه بنا نه کوي ۲۵ هيڅوک دِ دَ ځان ځيزونه نه لټوي
۲۶ مگر دَ نورو ځيزونه ۲۶ هرځيز چه په دوکان دَ قصابانو کښ خرڅيږي خورئِ

ني او دَ تميز په سبب ئ هيڅ پوښتنه مه کوئ ځکه چه زمکه او ډکوالي دَ دي
٢٧ څخداوند دي ٢٧ او که چرې څوک تاسي له غير مؤمنانو و بولي او تاسي اراده
دَ ورتلو وکړئ نو هرڅه چه ستاسي په مخ کښې کيښولي شي خورئ ئ او دَ
٢٨ تميز په سبب ئ پوښتنه مه کوئ ٢٨ ليکن که چرې تاسي ته څوک ووايي چه دا
٢٩ دَ بُت قرباني ده نو مه ئ خورئ دَ هغه دَپارَ چه در و ئ ښودله ٢٩ هغه تميز زه
وايم ستا خپل تميز نه بلکه دَ بل چا ځکه ولي دِ ځما په آزادئ دَ بل چا له تميز
٣٠ نه حکم وشي ٣٠ که زه له شکر سره شريک يم نو ولي دَ هغه څيز دَپارَ
٣١ چه زه شکر پرې کوم تهمتناک کيږم ٣١ پس که خورئ که څښئ هرڅه چه کوئ
٣٢ دَ الله دَ تمجيد دَپارَ کوئ ٣٢ بدرئ مه ورکوئ نه يهوديانو ته نه يونانيانو ته
٣٣ او نه کليسي دَ الله ته ٣٣ لکه چه زه هم په هر کار کښې ټول راضي لرم او
خپله فائده نه لټوم بلکه دَ ډيرو تا چه نجات ومومي ؞

## يولسم باب -

١ ١ تاسي ځما مقتديان شئ لکه چه زه دَ مسيح يم
٢ ٢ اي ورونړو زه ستاسي صفت کوم چه په هر کار کښې مِ په ياد لرئ
٣ او تعليمونه ساتئ لکه چه تاسي ته مِ هم وسپارل ٣ او دا اراده لرم چه تاسي
پوه شئ چه سر دَ هر سړي مسيح او سر دَ ښځي هغه سړي دي او سر دَ مسيح
٤ هغه الله دي ٤ هر سړي چه دُعا يا نبوت کوي او سر پټ لري خپل سر شرمنده
٥ کوي ٥ او هره ښځه چه په سرتوره دُعا يا نبوت کوي خپل سر شرمنده کوي ځکه
٦ چه دغه او خرېلي هم يو دي ٦ او که چرې ښځه خپل سر نه پټوي و دِ خرېلي
٧ شي او که ښځي ته خرېل يا پريکول رسوائي وي نو پټ کړي دِ شي ٧ ځکه چه
سړي ته بايده نه دي چه سر خپل پټوي ځکه چه دغه صورت او جلال دَ الله
٨ دَي او ښځه جلال دَ سړي ده ٨ ځکه چه سړي له ښځي نه دَي بلکه ښځه
له سړي نه دَه او نه سړي دَ ښځي دَپارَ پيدا شوي دَي بلکه ښځه دَ سړي دَپارَ
٩ ٩ له دي سببَ ښځي ته بايده دِي چه په خپل سر باندي اختيار و لري دَ
١٠ فرښتو په سبب ١٠ سره له دي چه ښځه بي له سړي نه او سړي بي له ښځي

نه دي په خداوند کښې ١١ ځکه لکه چه ښځه له سړيه ده هم هسې سړی له ١١
ښځې دی ليکن ټول څيزونه له الله دي ١٢ پس تاسې په خپله انصاف وکړئ ١٣
کنزه مناسب دي چه ښځه په سر نوره الله ته دعا کوي څه ؟ ١٤ يا طبيعت په خپله ١٤
تاسې ته دا نه درښيي څه ؟ چه سړي اوږده ويښته لري دا ئې بې عزتي ده
١٥ او که چرې دَ ښځې ويښته اوږده وي دا ئې عزت دی ځکه چه ويښته ١٥
دَ برقع په ځای ورکړې شوي دي ١٦ او که چرې څوک جګړه کونکي وي نو مونږ ١٦
داسې عادت نه لرو او نه کليسې دَ الله
١٧ ليکن په دې حکم کولو سره زه ستاسې صفت نه کوم ځکه چه تاسې ١٧
سره جمع کيږئ نه دَ نيکی دَپاره بلکه دَ بدی دَپاره ١٨ اول چه تاسې په کليسې ١٨
کښې جمع کيږئ زه اورم چه ستاسې په مينځ کښې جدائي شته او زه په هغه
څه قدر باور لرم ١٩ ځکه چه ضرور دي چه ستاسې په مينځ کښې بدعتونه ١٩
وشي تا چه مقبولان په تاسې کښې ظاهر شي ٢٠ پس چه تاسې يو ځای سره ٢٠
جمع کيږئ نو دا دَ عشائ رباني دَ خوړلو دَپاره نه دي ٢١ ځکه چه په خوړلو ٢١
کښې هر يو خپل خوراک وړاندې اخلي او څوک خو وږي او څوک مست وي
٢٢ کنزه تاسې کورونه نه لرئ چه په کښې وخورئ او وڅښئ يا کليسيا دَ الله ٢٢
سپکه ګنړئ او هغه چه نه لري شرمنده کوئ تاسې ته به څه ووايم په دې
کښې به ستاسې صفت وکړم څه ؟ صفت نه کوم ٢٣ ځکه چه ما هغه له خداونده ٢٣
بيامونده چه تاسې ته مې وسپارل چه خداوند يسوع په هغې شپې چه
په کښې وسپارلې شه ډوډئ واخسته ٢٤ او شکر ئې وکړ او ماته ئې کړه و ئې ٢٤
ويل چه دا ځما جسه ده ستاسې دَپاره دا ځما دَ يادګارئ دَپاره کوئ ٢٥ هم هسې ٢٥
کاسه پس له خوراکَ دَ نمابنامه و ئې ويل چه دا کاسه هغه نوې عهدنامه ده
ځما په وينو کښې هر کله چه دا څښئ ځما دَ يادګارئ دَپاره دا کوئ ٢٦ ځکه هر کله ٢٦
چه دا ډوډئ خورئ او دا کاسه څښئ نو تاسې هغه مرګ دَ خداوند ظاهر
کوئ تر هغه پورې چه راشي ٢٧ ځکه چه هر څوک چه دا ډوډئ وخوري يا دَ ٢٧
خداوند کاسه په نالايق طور سره وڅښي هغه دَ خداوند دَ جسې او دَ وينو

٢٨ کرم دَي ٢٨ پس سړي دِ خپل ځان وَ آزمايي او په دي شان دِ له دغي ډوډئ
٢٩ او له دغي پيالي نه وڅښي ٢٩ ځکه چه هغه چه خوري او څښي دَ خپل
٣٠ ځان دَپارَ کرم والي خوري او څښي هغه جسه چه نه يي پيژني ٣٠ له دي سببَ
٣١ په تاسي کښې ډير ضعيفان او رنځوران دِي او ځني اوده کيږي ٣١ که چري مونږ
خپل ځانونه پيژاندلي نو به کرم کړي شوي نه وُو ٣٢ ليکن چه کرم کيږُو نو له
خداوند نه ادب بياموو هسي نه چه مونږ له عالم سره عدالت موندلي
٣٣ شُو ٣٣ نو اي ځما وروڼو چه تاسي دَ خوراک دَپارَ سره جمع کيږئِ يو دَ بل
٣٤ انتظار کوئِ ٣٤ که څوک وږي وِي په کور کښې دِ وخوري تا چه ټوليدل دَ پرکيدلو
دَپارَ را نه شي او باقي څيزونه چه دِي هرکله چه درشم په ترتيب به يي جوړ کړم ❊

# دولسم باب

١ ١ او دَ روحاني څيزونو په باب اي وروڼو اراده نه لرم چه ناپوهه شئِ ـ
٢ ٢ تاسي پوهيږئِ چه تاسي غير قومونه وئ او گونگو بتانو ته په هغه شان
٣ سره لکه چه تاسي بيولي شوئِ بيولي وئ ٣ دي دَپارَ زه مو پوهوم چه هيڅوک
چه په روح دَ اَللّه خبري کوي نه وايي چه يسوع لعنتي دَي او هيڅوک نه توانيږي
چه و وايي چه يسوع خداوند دَي مگر په رُوحُ القُدُسْ سره
٤ ٥ ٤ او نعمتونه رنگارنگ دِي مگر روح هم هغه دَي ٥ او خدمتونه رنگارنگ
٦ دِي مگر خداوند هم هغه ٦ او عملونه رنگارنگ دِي او اَللّه هم هغه عمل کونکي
٧ چه په ټولو کښې ټول څه کوي ٧ ليکن ظهور دَ روح هر يوه ته دَ فايدي دَپارَ
٨ ورکړي شه ٨ ځکه چه يوه لره په وسيلي دَ روح کلام دَ حکمت ورکړي شوي
٩ دَي او بل ته کلام دَ علم په موافق هم دَ هغه روح ٩ بل ته ايمان هم په هغه
١٠ روح کښې او بل ته نعمتونه دَ شفا په هغه يوه روح کښې ١٠ او بل ته عملونه
دَ قدرتونو او بل ته نبوّت او بل ته تميز دَ ارواحونو او بل ته قسم قسم
١١ دَ ژبو او بل ته ترجمه دَ ژبو ١١ ليکن دا ټول څيزونه هم هغه يو روح عمل کوي
چه هر يوه ته کوښې کوښې لکه چه غواړي هسي ويش کوي
١٢ ١٢ پس لکه جُسّه يوه دَه او اندامونه ډير لري او ټول اندامونه دَ يوي

جُثې هر څو چه ډیر دِي یوه جُثه کیږي هم هسې مسیح ۱۳ ځکه چه مونږ ټولو ۱۳
په یوه روح کښې یوې جُثې ته بپتسما بیاموندې که یهودیان یُو که یونانیان
که غلامان که آزاد مونږ ټول دَ یوه روح اوبه کړي شولو ۱۴ ځکه چه هغه ۱۴
جُثه یو اندام نه دي بلکه ډیر ۱۵ که چرې پښه ووایي چه زه لاس نه یم ۱۵
نو له هغې جُثې نه یم نو کنږه هغه په دې سبب له جُثې نه ده څه؟ ۱۶ او ۱۶
که چرې غوږ ووایي چه زه سترګه نه یم نو له هغې جُثې نه یم نو کنږه هغه
په دې سبب له جُثې نه دې څه ۱۷ که چرې ټوله جُثه سترګه وَې نو اوریدل ۱۷
به چرې وُو او که چرې ټول اوریدل وِې نو بویول به چرته وُو ۱۸ لیکن اوس ۱۸
الله هر یو اندام په جُثې کښې ایښې دي لکه چه اراده ئې وکړه ۱۹ نو که ۱۹
چرې ټول سره یو اندام وَې نو جُثه به چرته وه ۲۰ مګر اوس خو اندامونه ۲۰
ډیر دِي مګر جُثه خو یوه ده ۲۱ او سترګه نه توانیږي چه لاس ته ووایي چه ۲۱
زه تا ته حاجت نه لرم یا سر هم پښو ته، چه زه ستاسې حاجت نه لرم ۲۲ بلکه ۲۲
زیات له دې هغه اندامونه دَ جُثې چه زیات ضعیف ښکاره کیږي ضروري
دِي ۲۳ او هغه اندامونه دَ جُثې چه مونږ ئې بې عزته ګنړو هغوی ته به ۲۳
ډیر زیات عزّت واغوندوو او څمونږ بې رونقه اندامونه زیات ښائسته رونق
لرې ۲۴ او څمونږ ښایسته رونق دار اندامونه حاجت نه لرې لیکن الله بدن ۲۴
دا رنګ ګډ کړ چه ناکاره اندام ته ئې زیات عزّت ورکړ ۲۵ تا چه په جُثې ۲۵
کښې جدائي و نه شي بلکه اندامونه په یوه درد سره دَ یوه بل اندیښنه کوي
۲۶ نو که چرې یو اندام و درديږي نو ټول اندامونه ور سره درديږي او که ۲۶
چرې یو اندام عزّت بیاموي نو ټول اندامونه ور سره خوشحالیږي ۲۷ پس تاسې ۲۷
دَ مسیح جُثې یئ او اندامونه ګوښې ګوښې ۲۸ او الله ځنې په کلیسیې کښې ۲۸
مقرر کړي دِي اول رسولان دویم نبیان دریم استاذان بیا قوتونه بیا دَ شفاءُ
نعمتونه مددګاريِ او سرکاريِ او قسمونه دَ ژبو ۲۹ نو کنړه واړه رسولان دِي ۲۹
کنړه واړه نبیان دِي کنړه واړه استاذان دِي کنړه واړه قوتونه دِي ۳۰ کنړه ۳۰
واړه دَ شفاءُ نعمتونه لرې کنړه واړه په ژبو خبرې کوي کنړه واړه ترجمې کوي

۳۱ ۳۱ نو تاسي دَ ډېرو ښو نعمتونو ډېر خواهش وکړئ زه تاسي ته بيحده ښه لار
هم در ښکاره کوم ✣

## ديارلسم باب

۱ ۱ کهٔ زه دَ سړيو او دَ فرښتو په ژبو وايم او محبّت نه لرم نو ټنګيدونکي
۲ زيړ يا شرنګيدونکي تالۍ شوم ۲ او کهٔ نبوّت لرم او په وارو رازونو او په ټول
علم پوهيږم او که پوره ايمان لرم هسي چه غرونه وړم او محبّت نه لرم نو هيڅ
۳ نه يم ۳ او کهٔ ټول مال خپل خيرات کړم او که جُسته خپله وسپارم چه
۴ وسيزلي شم او محبّت نه لرم نو هيڅ فائده نه مومم ۴ محبّت اوږد زغم کوي او
۵ مهرباني کوي محبّت حسد نه کوي محبّت کبرجني نه کوي نه پړسيږي ۵ بيحيائي نه
۶ کوي خپل ځيزونه نه لټوي زوړل نه کوي بدګماني نه کوي ۶ په ناراستئ خوښي
نه کوي بلکه په راستي خوشحالي کوي ۷ او په وارو پرده اچوي په وارو باور کوي
۸ په وارو اميد لري په وارو صبر کوي ۸ محبّت هيڅکله نه پرېوزي ليکن که نبوّتونه
وي خو باطل به شي که ژبي دي خو تمامي به شي که علم وي خو باطل به شي
۹ ۱۰ ۹ ځکه چه مونږ لږ څه علم پوهيږو او مونږ لږ څه نبوّت کوو ۱۰ مګر هرکله
۱۱ چه هغه چه کامل دَي راشي نو هغه چه لږ څه وي باطل به شي ۱۱ هرکله
چه زه هلک وم لکه هلک هسي مِ خبري کولي لکه هلک هسي مِ انديښنه
کوله لکه هلک هسي مِ فکر کاوه چه ځوان شوم نو هلکتوب مِ ترک کړ —
۱۲ ۱۲ ځکه چه اوس مونږ په ښيښو کښ دَ معما په شان وينو ليکن هغه وقت
په روبرو اوس به لږ څه پوهيږم ليکن هغه وقت به داسي وپيژنم لکه چه
۱۳ زه وپيژاندلي شوم ۱۳ اوس خو باقي دي ايمان اميد محبّت دا دري ليکن محبّت
له دغو زيات لوي دَي ✣

## څوارلسم باب

۱ ۱ په محبّت پسي شئ او دَ روحاني نعمتونو کښ کوشش کوئ مګر خاص دا چه
۲ نبوّت وکړئ ۲ ځکه هغه څوک چه په ژبه خبري کوي سړيو ته خبري نه کوي
بلکه الله لره ځکه چه هيڅوک نه اوري مګر په روح سره دَ رازونو خبري کوي

۳ هغه چه نبوّت کوِي نو سړو ته خبرې کوِي په بنا کولو او په تسلي او په ۳
نصيحت ۴ او هغه څوک چه په ژبه خبرې کوِي خپل ځان بنا کوِي مګر هغه ۴
څوک چه نبوّت کوِي کليسيه بنا کوِي ۵ او زه غواړم چه تاسي په ژبو سره ۵
خبرې وکړئ ليکن زيات چه نبوّت وکړئ ځکه چه نبوّت کونکي له ژبو ويونکو
زيات لوي دِي بې له دې چه ترجمه کوِي تاچه کليسيه معموره شي ۶ ليکن ۶
اوس اې ورونړو که زه په ژبو ويونکي تاسو ته درشم نو څه فائده به در
ورسوم که زه په کشف يا په علم يا په نبوّت يا په تعليم در سره خبرې
و نه کړم ۷ هم هسي هغه بې ځان څيزونه چه آواز کوِي که شپيلۍ وِي که ۷
ستار که په آوازونو کښ فرق نه ورکوِي نو څرنګ به معلوم شي چه شپيلۍ
يا ستار څه غږوِي ۸ که چرې ترنګ نامعلوم آواز ورکړي نو څوک به جنګ ۸
ته تيارِي وکړِي ۹ هم هسي که تاسي په ژبې سره فهميدلې خبرې و نه کړئ ۹
نو هغه چه ويلې شي څرنګ به معلومې شي نو تاسي به په باد ويونکي شئ-
۱۰ کوندي په دنيا کښ به داسي رنګارنګ لغتونه وِي او هيڅ يو بې معنى نه ۱۰
دي ۱۱ پس که زه په قوت دَ لغت نه پوهيږم نو خبرې کونکي ته به اوپرده ۱۱
بنکاره شم او خبرې کونکي به ما ته اوپرده شي ۱۲ هم هسي تاسي چه دَ روحاني ۱۲
څيزونو غيرت‌ناک يئ دَ کليسيې د بنا کولو طلب کوئ چه زياته شي ۱۳ دې ۱۳
دَ پاره هغه څوک چه په ژبو خبرې کوِي دعا دِ کوِي چه ترجمه وکړِي ۱۴ ځکه چه ۱۴
که زه په ژبې دعا کوم نو روح ځما دعا کوِي او ذهن مِ بې ميوې دې ۱۵ نو بيا ۱۵
څه په روح دعا وکړم او په ذهن به هم دعا وکړم په روح به سرود وغږوم
په ذهن به هم سرود وغږوم ۱۶ او که نه نو که ته په روح سره برکت کوِي ۱۶
نو هغه څوک چه دَ اُمیانو په ځاي وِي نو څرنګ به ستا په شکرګذارۍ
آمين ووايي ځکه چه هغه نه پوهيږي چه ته څه وايې ۱۷ ته خو په بنه شان ۱۷
شکر کوِي ليکن بل څوک نه بنا کيږي ۱۸ الله ته دِ شکر وِي چه له تاسي ۱۸
ټولو نه زيات په ژبو خبرې کوم ۱۹ ليکن په کليسيه کښ اراده لرم چه پنځه ۱۹
خبرې په خپل ذهن سره ووايم تاچه نورو ته تعليم ورکړم زيات له لسو زرو

چه په ژبه ئې وايم
۲۰ ۲۰ اي وروڼرو تاسي په ذهنونو کښ هلکان مه شئ بلکه په بدي کښ
۲۱ ماشومان شئ مګر په ذهنو کښ کاملان شئ ۲۱ په تورېت کښ ليکلي دي
خداوند وائي چه زه به په نورو ژبو او په نورو شونډو له دي قوم سره
۲۲ خبري وکړم او په دي شان به هم وانه وري ۲۲ پس ژبي نه دَ مؤمنانو دَپاره
نخښه دَه بلکه دَ غير مؤمنانو دَپاره ليکن نبوّت نه دَ غير مؤمنانو دَپاره بلکه
۲۳ دَ مؤمنانو دَپاره دَي ۲۳ نو که چري هغه ټوله کليسيه په يوځاي کښ سره
جمع شي او واړه په ژبو خبري وکړي او اُميان يا غير مؤمنان دننوزي نو
۲۴ و به نه وائي چه ليونتوب کوئ ۲۴ مګر که ټول نبوّت کړي او يو غير مؤمن يا
۲۵ اُمّي درننوزي نو هغه له ټولو ملامت کيږي او له ټولو حکم پري کيږي ۲۵ پټي
خبري دَ زړه ئې ښکنديږي: او دا هسي به پړمخ پريوزي اَللّٰه ته به عبادت وکړي
او منادي کونکي چه هغه اَللّٰه په تاسي کښ شته دَي
۲۶ ۲۶ پس اي وروڼرو څه دي هرکله چه تاسي سره جمع کيږئ نو هر يو
يا زبور لري يا تعليم لري يا مکاشفه لري يا ژبه لري يا ترجمه لري نو ټول
۲۷ څيزونه دِ دَ بناکولو دَپاره وشي ۲۷ که څوک په ژبه خبري کوي نو دوه دوه
۲۸ نهايت دري دري تنه دِ وي په ترتيب سره او يو دِ ترجمه کوي ۲۸ او که ترجمه
کونکي نه وي نو په کليسي کښ دِ چپ اوسي او له ځان او له الله سره دِ
۲۹ خبري وکړي ۲۹ او که نبيان وي نو دوه دري تنه دِ خبري کوي او نور دِ تميز
۳۰ کوي ۳۰ او که چري بل چا ته چه ناست وي مکاشفه ښکاره شي نو وړنبي
۳۱ دِ چُپ شي ۳۱ ځکه چه تاسي ټول توانيږئ چه يَو يَو نبوّت وکړئ تاچه ټول
۳۲ زده کړي او ټول تسلّي بيامومي ۳۲ او روحونه دَ نبيانو تابعدار دَ نبيانو دي
ځکه چه اَلله دَ پريشانئ اَلله نه دي بلکه دَ سلامتي لکه چه په ټولو کليسو
دَ پاکانو کښ
۳۴ ۳۴ ستاسي ښځي دِ په کليسو کښ پټي خولي اوسي ځکه چه دوي ته
دَ خبرو کولو اجازت نشته بلکه تابعداري دِ کوي لکه چه تورېت هم وائي-

۳۵ ۳۵ اوکه اراده دَ زده کولو لري نو په کور کښې دِ له خپلو سړيو پوښتنه وکړي
۳۶ ځکه چه ښځي ته ګنده ده چه په کليسي کښې خبري وکړي ۳۶ ياخو کلام دَ
الله له تاسي را ووت يا تش تاسي ته ورسيده

۳۷ ۳۷ که څوک خپل ځان نبي يا روحاني وګڼي نو هغه دِ پوه شي چه هغه
۳۸ څيزونه چه زه يې تاسي ته ليکم حکم دَ خداوند دي ۳۸ اوکه څوک نه پوهيږي
نو نه دِ پوهيږي

۳۹ ۳۹ له دي سببه اي ورونړو تاسي کوشش وکړئ چه نبوّت وکړئ او
له خبرو کولو په ژبه منع مه کوئ مګر ټول څيزونه دِ ښائسته او دَ ترتيب
په موافق وي ❖

# پنځلسم باب

۱ آنو اي ورونړو زه تاسي پوهوم په هغه انجيل چه ما يې تاسي ته زيري
۲ درکړ چه تاسي هم قبول کړ او هم پر ولاړ يئ ۲ او دَ هغه په سبب هم
خلاصيږئ که چري تاسي ياد کړئ چه په کوم کلام مي تاسي ته زيري درکړ تاسي
۳ يې ټينګ ولرئ اوکه نه نو تاسي به عبث ايمان راوړئ ۳ ځکه چه ما په
اول کښې تاسي ته وسپارل هغه چه ما هم بياموندل چه مسيح ځمونږ دَ
۴ خطاؤ دَپاره موافق دَ نوشتو مړ شه ۴ او چه ښخ کړي شه او چه په دريمه
۵ ورځ موافق دَ نوشتو ژوندي پورته کړي شه ۵ او دا چه کيفا ته ظاهر شه
۶ او پس هغو دولسو ته ۶ او بيا له پنځو سوو ورونړو په زياتو يو وار ظاهر
شه او له هغو نه ډيرکسان لا تر اوس پوري باتي دي ليکن ځني اوده شول
۷ ۷ او پس له هغه نه يعقوب ته ظاهر شه او پسي ټولو رسولانو ته ۸ او له
۸
۹ ټولو وروستو په ما ګويا کښې سقطي ته هم ظاهر شه ۹ ځکه چه زه وړکوتي
دَ رسولانو يم او هغه چه لايق دَدي نه يم چه رسول وبللي شم ځکه چه ما
۱۰ کليسه دَ الله وربړوله ۱۰ مګر په فضل دَ الله يم هرڅه چه يم او هغه
فضل دَده چه په ما وُه عبث نه شه بلکه ما له هغو ټولو نه زيات مشقت
۱۱ وکړ ليکن نه ما بلکه فضل دَ هغه الله چه له ما سره وُه ۱۱ نوکه زه يم

که دوي دِي په هغه شان سره وعظ کړو او په هسي شان تاسي ايمان راوړ
۱۲ ۱۲ مگر که په مسيح وعظ وکړي شِي چه له مړو پورته کړي شوي دي
۱۳ نو څرنگ ځيني له تاسي وايي چه دَ مړو قيامت نشته ۱۳ او که قيامت دَ
۱۴ مړو نشته نو مسيح پورته کړي شوي نه دي ۱۴ پس چه مسيح پورته کړي شوي
۱۵ نه دي نو څمونږ وعظ هم باطل دي او ستاسي ايمان باطل دي ۱۵ او مونږ
هم دروغژن شاهدان دَ الله موندلي کيږو ځکه چه مونږ دَ الله په جهت
شاهدِي ولله چه ده مسيح پورته کړ هغه چه پورته ئي نه کړ هسي که مړي
۱۶ نه پورته کيدلي ۱۶ ځکه چه که مړي نه پورته کيږي نو مسيح هم پورته کړي شوي
۱۷ نه دي ۱۷ او که مسيح پورته کړي شوي نه دي نو ستاسي ايمان باطل او لا
تر اوسه پوري په خپلو خطاؤ کښ يئِ ۱۸ بلکه هغوي هم چه په مسيح کښ اوده
۱۹ کيږي هلاک شول ۱۹ که چري مونږ په دي ژوندانه کښ په مسيح باندي
اميدوار يو نو مونږ دَ ټولو سړيو زيات بد بخت يُو
۲۰ ۲۰ بلکه اوس خو مسيح له مړو پورته کړي شوي دَي ورنبئِ ميوه دَ اوده
۲۱ کيدونکو شه ۲۱ ځکه لکه چه دَ سړِي په وسيلي مرگ هم هسي دَ سړِي په
۲۲ وسيلِي قيامت دَ مړو دَي ۲۲ او لکه چه په آدم کښ ټول مړي هم هسي به
۲۳ په مسيح کښ ټول ژوندِي کړي شِي ۲۳ ليکن هرڅوک په خپلي خپلي مرتبي کښ
۲۴ ورنبئِ ميوه مسيح بيا هغوي چه دَ مسيح وِي دده په راتلو کښ ۲۴ پس له
دهٔ نه اخرت دَي هغه وقت چه دي بادشاهي دَ الله او پلار ته وسپاري او
۲۵ هغه وقت به ټول حکومت او ټول اختيار او ټول قدرت باطل کړي ۲۵ ځکه
چه واجب دِي چه دَي بادشاهي وکړي تر هغه پوري چه ټول دښمنان تر
۲۶ خپلو پښو لاندي کښي نه بږدِي ۲۶ آخرين دښمن چه باطل کړي به شِي مرگ دَي
۲۷ ۲۷ ځکه چه ده ټول څيزونه دَ هغه تر پښو لاندي کيښول نو هرکله چه وايِي
چه ټول څيزونه لاندي کيښودلي شول نو دا ظاهره ده چه دا بي له هغه چا
۲۸ دِي چه ټول څيزونه ئي ورته لاندي کيښودل ۲۸ او هرکله چه ټول څيزونه
دَده دَ لاندي کيښودلي شِي نو به په خپله زوي هم دَده دَ لاندي کيښودلي شِي

چه ټول څيزونه يې تر ده لاندې کړل تر هغه چه الله کُل په کُل کښ وي
۲۹ اوکه نه نو هغه کسان چه د مړو دپاره بپتسما اخلي څه به کوي ۲۹
اوکه بالکل مړي نه پورته کيږي نو څله د هغو دپاره بپتسما اخلي ۳۰ او ۳۰
مونږ ولي هر ساعت په خطرې کښ يُو ۳۱ په هغه فخر ستاسي چه ما لره ۳۱
څمونږ په خداوند يسوع مسيح کښ دي قسم شه چه زه هره ورځ مرم۔
۳۲ که زه په آفسس کښ د سړي په شان له درندګانو سره وجنګيدلم ۳۲
نو ما لره څه فائده ده که مړي پورته کړي نه شي نو مونږ دِ خورو څښو ځکه
چه صبا به مړه شُو ۳۳ مه غوليږئ بد صحبتونه ښه عادتونه خرابوي ۳۴ په ۳۳ ۳۴
صداقت سره ويښ اوسئ او خطا مه کوئ ځکه چه ځيني معرفت د الله نه لري
او زه ستاسي د شرمولو دپاره وايم
۳۵ ليکن څوک به ووائي چه مړي څرنګ پورته کيدلي شي او په کومي جُسّي ۳۵
راځي ۳۶ اي ناپوهه هغه چه ته يې کري که مړه نه شي نو نه ژوندي کيږي۔ ۳۶
۳۷ او هغه چه ته يې کري هغه جُسّي نه کري چه وبه شي بلکه خالي دانه کندي ۳۷
د غنمو يا د نور څه ۳۸ او الله هغه ته هسي جُسّه ورکوي لکه چه اراده يې ۳۸
وکړه او هر يوه د تخمونو خپله جُسّه ۳۹ ټولي غوښي يوه غوښه نه ده بلکه د ۳۹
سړيو بل څه او د چارپايانو بله غوښه او د مرغانو بله غوښه او د کبانو
بله ۴۰ او آسماني جُسي شته دي او زميني جُسي ليکن جلال د آسمانيانو ۴۰
بل دي او جلال د زمينيانو بل دي ۴۱ جلال د نمر بل دي او جلال د سپوږمۍ ۴۱
بل دي او جلال د ستوريو بل دي ځکه چه ستورې له ستورې په جلال کښ
فرق لري ۴۲ او هم هسي قيامت د مړو دي په ورستيدنه کښ کرلي ۴۲
کيږي په نا ورستيدني کښ پورته کيږي ۴۳ په بي عزتۍ کښ کرلي کيږي ۴۳
په جلال کښ پورته کيږي په ضعيفي کښ کرلي کيږي په قوّت کښ پورته کيږي
۴۴ نفساني جسّه کرلي کيږي روحاني جُسّه پورته کيږي که نفساني جُسّه شته ۴۴
نو روحاني جُسّه هم شته ۴۵ داسي هم ليکلي شوي دي چه هغه اوّل انسان ۴۵
يعني آدم ژوندي ځان شه او هغه ورستني آدم ژوندي کونکي روح شه

٤٦ ٤٦ ليکن هغه روحاني اوّل نه دي بلکه هغه جسماني او پس له دغه نه هغه
٤٧ روحاني ٤٧ اول انسان له زمکي نه خاکي وَه دويم انسان له آسمانه -
٤٨ ٤٨ لکه چه خاکي هم هسي خاکيان دي او لکه چه هغه آسماني هم هسي
٤٩ آسمانيان دي ٤٩ او لکه چه مونږ دَ خاکي صورت ونيوه نو هغه آسماني
صورت به هم ونيسو

٥٠ ٥٠ او اي ورونړو زه دا وايم چه غوښه او وينه وارثان دَ بادشاهئِ
دَ الله کيدلي نه شي او نه به وروستيدنه وارثه دَ نا وروستيدني شي
٥١ ٥١ گوريِ زه تاسي ته يو راز وايم مونږ ټول به اوده نه شو بلکه ټول به
٥٢ بدل شو ٥٢ په يوه دم دَ سترگو په رپ کښ په وروستني شپيلي کښ
خکه چه شپيلئِ به وغږيږي او مړي به نا وراسته پورته کړي شي او مونږ
٥٣ به بدل شو ٥٣ خکه ضرور دي چه دا وروستيدنه به نا وروستيدنه
٥٤ واغونديِ او دا مريدنه به نامريدنه واغونديِ ٥٤ نو هغه وقت به ليکلي شوي
٥٥ کلام پوره شي چه مرگ به په بري کښ ونغړدلي شي ٥٥ اي مرگه بري
٥٦ ستا چرته دَي اي مرگه لَښَه ستا چرته دَه ٥٦ لښه دَ مرگ گناه ده او قوّت
٥٧ دَ گناه شريعت دَي ٥٧ مگر هغه الله ته شکر دي چه مونږ ته بري راکوي
٥٨ په وسيلي دَ خداوند خمونږ يسوع مسيح ٥٨ پس اي خما محبوبانو ورونړو ثابت
قدم اوسئِ نه خوزيدونکي دَ خداوند په کار کښ تل تل زياني توب کوئِ
وپوهيږئِ چه ستاسي مشقت په خداوند باطل نه دَي +

# شپاړسم باب

١ ١ او دَ هغي ټولوني په باب چه دَ پاکانو دَپاره ده لکه چه ما دَ گلاطيي
٢ وکليسو ته حکم ورکړ تاسي هم داسي وکړيِ ٢ چه په هر سبت کښ دِ هريو
له تاسي نه څه خيز له خپل ځان سره ذخيره کيږدي هسي نه چه خما دَ
٣ درتلو په وقت ټولونه وشي ٣ او هرکله چه زه در ورسيږم نو هغوي چه
تاسي يُې خوښ کړئِ له خطونو سره به يُې واستوم تاچه ستاسي خيرات و
٤ اورشليم ته يوسي ٤ او که خما تلل هم ضرور وي نو به دوي له ما سره

۵ لاړ شي ۵ او چه له مقدونيي تير شم نو تاسي ته به در شم ځکه چه زه له مقدونيي
۶ تيريږم ۶ اوګندي چه تاسي څخه به ډيره شم او يا به ژمي له تاسي سره تير کړم تا چه
۷ تاسي مې روان کړئ هرچرته چه زه ځم ۷ ځکه چه زه دا نه غواړم چه اوس مو په
تيريدلو کښی ووينم ولي چه زه اميد لرم چه انشاءالله چه څو مُده به له تاسي
۸ ۹ سره پاتي شم ۸ او دَ پنتيکوست تر اخترهِ به په افسس کښی پاتي شم ۹ ځکه چه
ځما دَ پارَ يوه لويه کارسازه دروازه وازه شوي ده او مخالفان ډير دي
۱۰ ۱۰ او که چري طمطاؤس درشي نو ګورئ چه تاسي څخه بي ويري وي ځکه چه
۱۱ هغه دَ خداوند کار کوي لکه چه زه هم ۱۱ او هيڅوک دِ ئي سپک و نه ګڼي بلکه په
سلامتي دِ ئي روان کړي تا چه ما ته راشي ځکه چه زه دَده منتظر يم سره له
۱۲ ورونړو ۱۲ او دَ اپلس ورور په حق کښی مې ډير سوالونه ورته وکړل چه له
ورونړو سره تاسي ته درشي ليکن دده اراده بالکل نه وه چه اوس درشي
مګر هرکله چه وزګار شي نو در به شي
۱۳ ۱۳. وينن اوسئ په ايمان کښی ټينګ ودريږئ مردانه شئ قوّت ناک شئ
۱۴ ۱۴ ټول کارونه ستاسي دِ په محبّت کښی وي
۱۵ ۱۵ اي ورونړو زه تاسي ته سوال کوم تاسي دَ استيفان کور پيژنئ چه دي نوي
۱۶ ميوه دَ اخائيي دَي او خپل ځان ئي دَ پاکانو دَ خدمت دَ پارَ تيار کړي دَي ۱۶ تاسي
۱۷ هم دَ داسي سړو او دَ هر يوه چه ورسره کار او محنت کوي تابعدار شئ ۱۷ او زه
دَ استيفان او دَ فرتوناتس او دَ اخايکوس په راتلو خوشحالي کوم ځکه چه ستاسي
۱۸ ناتمام کار دوي پوره کړ ۱۸ چه دوي ځما او ستاسي روح تازه کړ پس داسي کسان قبول کړئ
۱۹ ۱۹ د آسيي کليسيي ته سلام وايي عاقلا او پريسکلا له هغي کليسيي سره
۲۰ چه دَ دوي په کور کښی ده تاسي ته په خداوند کښی ډير سلام وايي ۲۰ ټول
ورونړه تاسي ته سلام وايي له پاکو کښلولو سره يو بل ته سلام ووايئ
۲۱ ۲۲ ۲۱ ځما پولس سلام له خپل لاس نه ۲۲ هرڅوک چه له خداوند يسوع مسيح
۲۳ سره محبّت نه لري ملعون دِ وي (ماران آتا) ۲۳ فضل د خداوند يسوع دِ له
تاسي سره وي ځما محبّت دِ له تاسي ټولو سره په مسيح يسوع کښی وي - آمين **

# دویم خط دَ پولس رسول وقرنتیانو ته

# دویم خط دَ پولس رسول وقرنتیانوته

## اوّل باب

١ پولُس رسول دَ یسوع مسیح په ارادي دَ الله او طمطاؤس ورور هغي ١
کلیسیي دَ الله ته چه په قرنت کښِ ده له هغو ټولو پاکانو سره چه په
ټولي اخائیي کښِ دِي ٢ فضل او سلامتي دِ خمونږ دَ الله پلار او دَ ٢
خداوند یسوع مسیح ناسو لره وِي
٣ مبارک دي الله او پلار خمونږ دَ خداوند یسوع مسیح پلار دَ رحمتونو ٣
او الله دَ ټولي تسلِي ٤ هغه چه مونږ ته په هري تنگسي کښِ تسلِي راکِوي تا ٤
چه مونږ وتوانیږو چه په هغي تسلّي سره چه له الله نه ئي بیاموږ نورو لره
په هري تنگسي کښِ تسلِي ورکُو ٥ ځکه لکه چه دَ مسیح دردونه په مونږ بانډِ ٥
زیاتیږِي هم هسي دَ مسیح په وسیلي تسلّي خمونږ زیاتیږِي ٦ نوکه مونږ په تنگیږو ٦
ستاسي دَ تسلّي او دَ نجات دَپارَ دِي یاکه مونږ تسلِي مومو نو هغه هم ستاسي
دَ تسلِي او دَ نجات دَپارَ دِي هغه چه کار کونکي دي په صبر دَ هغو دردونو
چه مونږ هم پري دردیږُو او خمونږ امید ستاسي دَپارَ محکم دَي ٧ مونږ پوه یو ٧
چه تاسي لِکه چه په دردونو کښِ شریکان یئ هم هسي په تسلِي کښِ به یئِ
٨ نو اي ورونړو مونږ نه غوارُو چه تاسي ناخبره شئِ خمونږ دَهغي تنگسي
په باب چه په آسیي رابیښه شوه چه له طاقت نه ډیر زیات بار شولو
تر هسي حده چه له ژوندونه هم نااُمید شولو ٩ بلکه مونږ په خپلوځانو حکم دَ مرګ ٩
لاره چه په خپلوځانو توکل کونکي نه شُو بلکه په هغه الله چه پورته کونکي دَ مړو دَي ١٠ هغه چه ١٠
له داسي لوي مرګَ یئ خلاص کړُو او خلاص به مو کړِي هغه چه مونږ امید
پري لرُو چه پس له دي به مو هم خلاصوِي ١١ او تاسي هم په دعاکښِ خمونږ ١١
سره مددګارِي کوئِ تاچه هغه نعمت چه له ډیرو کسانو نه په مونږ بانډِ
بخښ کړِي شه دَ ډیرو په وسیلي سره خمونږ شکر ادا کړي شِي

١٢ ١٢ ځکه چه ځمونږ فخر دا دَي یعني ځمونږ دَ تمیز شاهدِي چه مونږ
دَ الله دَ پاکِي او دَ صاف دلِي سره نه په جسمانِي حکمت کښ بلکه دَ الله په
١٣ فضل کښ مو په دنیا کښ گذران وکړ او زیات ستاسي په لورِي ١٣ ځکه
چه مونږ تاسي ته نور څه نه لیکُو مگر هغه چه تاسي يې لولئ یا يې منئ او ځما
١٤ امید دي چه تر آخره پورِي به يې منئِ ١٤ لکه چه تاسي څه قدر مونږ ومنلو
چه مونږ ستاسي فخر یُو لکه چه تاسي ځمونږ هم يئِ دَ خداوند یسوع
په ورځ کښ

١٥ ١٥ او ما په دي یقین وغوښتل چه اوّل تاسي ته درشم تاچه تاسي
١٦ دویم نعمت ولرئِ ١٦ او له تاسي به مقدونیي ته تیر شم او له مقدونیي
١٧ به بیا تاسي ته درشم او له تاسي به یهودیي ته روان کړي شم ١٧ پس ما چه
دا وغوښتل گنړه سپک والِي مِ استعمال کړ څه یا هغه څیزونه چه و مِ
غوښتل نو گنړه په جسمانِي طور مِ وغوښتل تاچه له ما څخه هغه هو
١٨ او نه نه وِي ١٨ لیکن آمین هغه الله چه هغه کلام ځمونږ چه له تاسي سره
١٩ وه هو او نه نه دَي ١٩ ځکه چه زوي دَ الله یسوع مسیح چه په ده ستاسي
په مینځ کښ ځما په معرفت وعظ وکړي شه یعني ځما او دَ سلوانس او
دَ طمطاوس په معرفت په هو او په نه سره و نه شه بلکه په ده کښ
٢٠ هو وشه ٢٠ ځکه چه هرڅومره وعدي دَ الله چه وي په ده کښ هو او له
دي سببَ دَده په وسیلي هغه آمین دَي دَپارَ دَ تمجید دَ الله ځمونږ په
٢١ وسیلي ٢١ او هغه چه مونږ له تاسي سره په مسیح کښ ثابتِوي او مونږ
٢٢ يې مسحه کړُو هغه الله دَي ٢٢ هغه چه مُهر يې هم کړلو او دَروح بیعانه
يې ځمونږ په زړونو کښ راکړله

٢٣ ٢٣ لیکن زه الله په خپل ځان باندِ شاهد کوم چه په تاسي دَ
٢٤ شفقت کولو دَپارَ قرنت ته نه درغلم ٢٤ نه دا چه مونږ ستاسي په
ایمان خداوندِي وکړُو بلکه مونږ ستاسي دَخوښِي همکاران یُو ځکه چه
تاسي په ایمان کښ ثابت شئِ ❊

# دویم باب

۱ آ او ما په خپل زړه کښې قصد وکړ چه بیا به په غم کښې تاسي ته
۲ در نه شم ۲ ځکه چه که زه تاسي غمجن کړم نو څوک دي چه ما به خوشحال
۳ کړي مګر هغه چه له ما نه غمجن کړي شوي دي ۳ او ما تاسي ته دا هم
ولیکل چه هسي نه وي چه زه درشم نو غمـم مِ وي له هغو نه چه واجب
وه چه زه ورسره خوشحال شم ځکه چه په تاسي ټولو مِ باور دي چه ځما
۴ خوښي ستاسي دَ ټولو ده ۴ ځکه چه ما له ډیرې ډیرې او دَ زړه له تنګئ
نه تاسي ته په ډیرو اوښکو سره ولیکل نه چه تاسي غمجن شئ بلکه چه
تاسي ئي پیژنئ هغه محبّت چه زه ئي درسره ډیر ډیر لرم
۵ ۵ او که چري چا غم کړي دي زه ئي غمجن کړي نه یم بلکه تاسي ټول
۶ لږ څه زه هم (هسي نه چه زه په تاسو بار کیږدم) ۶ دا سزا داسي سړي لره
۷ بس ده چه له ډیرو ور ورسیدله ۷ نو برعکس دَ هغه (سړي) احسان کول
او تسلّي ورکول بهتر دي هسي نه چه دا رنګه له ډیر غم نه و نغردلي شي
۸ ۹ ۸ ځکه سوال کوم چه تاسي له هغه سره محبّت ثابت کړئ ۹ دي دَپارَ مِ هم
تاسي ته ولیکل تاچه ستاسي دلیل و پیژنم چه تاسي په ټولو خبرو کښې
۱۰ تابعدار یئ که نه ۱۰ او هرچا ته چه تاسي څه بخښ وکړئ نو زه هم وکړم
ځکه چه هرڅه چه ما بخښ کړي دي ستاسي دَپارَ مِ دَ مسیح په روی
۱۱ کړي دي ۱۱ هسي نه چه شیطان په مونږ کښې طمع وکړي ځکه چه مونږ
دَ ده له فکرونو ناخبره نه یو
۱۲ ۱۲ او هرګاه چه زه طرواس ته دَ مسیح دَ انجیل دَپارَ ورغلم نو
دروازه په خداوند کښې راته پرانتلي شوه نو هم ما په خپل روح کښې آرام
نه لاره ځکه چه خپل ورور طیطس مِ بیا نه موند نو له هغوي نه مِ رخصت
۱۴ واخست او مقدونیې ته ووتم ۱۴ نو هغه الله ته دِ شکروي چه مونږ ته
مدام په مسیح کښې بري راکوي او خوشبوئي دَ معرفت خپل څمونږ په وسیله

۱۵ سره په هر ځاي کښې ښکاره کوي ۱۵ ځکه چه مونږ دَ مسیح عطر یو الله
لره دَ هغو په مینځ کښې چه نجات مومي او دَ هغو په مینځ کښې چه
۱۶ هلاکیږي ۱۶ دغو لره خوشبوئي له مرګ نه تر مرګ پوري او هغوي لره
۱۷ خوشبوئي له ژوندانه تر ژوندانه پوري او څوک دي خبرو لره بس دَي ۱۷ ځکه
چه مونږ دَ ډیرو په شان نه یو چه په کلام دَ الله کټه کوو بلکه لکه په
اخلاص سره بلکه لکه له الله نه دَ الله په حضور په مسیح کښې خبري کوو +

## دریم باب

۱ ۱ آیا مونږ بیا په سفارش کولو شروع کوو څه یا مونږ دَ ځینو
۲ په شان دَ سفارش دَ خطونو تاسي ته یا له تاسي نه محتاج یو ۲ تاسي
زمونږ خطونه یئ چه زمونږ په زړونو کښې لیکلي شوي دي پېژندلي شوي
۳ او لوستلي شوي له ټولو سړیو نه ۳ ظاهر شوئ چه تاسي دَ مسیح خط
یي خدمت کړي شوي له مونږ نه لیکلي شوي نه په سیاهي سره بلکه دَ
ژوندي الله په روح سره نه په کاڼیزو تختو بلکه په تختو دَ غوښینو زړونو
۴ ۴ او مونږ دَ مسیح په وسیلي په الله داسي باور لرو ۵ نه داچه مونږ په خپله
بس یو چه مونږ دَ څه شي خیال وکړو لکه چه ګویا کښې زمونږ له ځانونو بلکه
۶ زمونږ کفایت له الله دَي ۶ هغه چه مونږ ئي کافي کړلو چه دَ نوي عهد
خادمان شو نه دَ حرف بلکه دَ روح ځکه چه حرف قتل کوي مګر روح
۷ ژوندي کوي ۷ او که خدمت دَ مرګ چه په حرفونو په کاڼي باندي کنودلي
شوي وه په جلال کښې وشه هسي چه بني اسرائیل نه وتوانیدل چه
دَ موسیٰ مخ ته خیر شي دَ هغه دَ څهري دَ جلال په سبب چه فاني کیدونکي
۸ وه ۸ نو لا څومره زیات به خدمت دَ روح په جلال کښې وشي ۹ ځکه چه
که خدمت دَ عدالت جلال وه نو لا څومره زیات به خدمت دَ صداقت په جلال
۱۰ کښې وشي ۱۰ ځکه چه هغه جلال کړي شوي هم په دي طور سره جلال کړي
۱۱ شوي نه شه په سبب دَ دغه زیاتیدونکي جلال ۱۱ ځکه چه که فاني کیدونکي
په جلال کښې وه نو لا څومره زیات به هغه باقي یه جلال کښې وي

١٣ پس چونکه زمونږ داسې امید دی نو په ډېر زړورتوب وایو او نه د موسیٰ په
شان چه په خپل مخ ئې پرده واچوله تا چه بني اسرائیل آخر د هغه فاني
١٤ کېدونکي څیز ته ونه ګوري لیکن د هغوی طبیعتونه سخت کړی شول ځکه
چه تر نن ورځې پورې هم هغه پرده د زاړه عهد په لوستو کښې اوچته نه کړی
١٥ پاتې ده هغه چه په مسیح کښې باطله کیږي بلکه تر نن ورځې پورې چه
١٦ موسیٰ لوستی شي نو هغه پرده د دوی په زړونو پرته وي لیکن هرکله
١٧ چه د خداوند په لورې واوړي نو هغه پرده به لرې کړی شي او هغه
خداوند روح دی او هرچرته چه د خداوند روح وي هلته آزادي ده
١٨ او مونږ ټول په ښکاره مخ سره د خداوند د جلال عکس بیونکي یو
او له جلال نه تر جلال پورې هم په هغه صورت بدل کیږو لکه چه د خداوند
په روح نه

## څلورم باب

١ پس هرکله چه مونږ دا خدمت لرو لکه چه په مونږ رحم وکړی شه
٢ نو نه ستړي کیږو بلکه د شرم پټ کارونه مو ترک کړل او په فریب کښې
نه ګرځو او نه ټګونکي د کلام الله د حق په ښکاروولو سره د هر یوه په
٣ تمیز کښې د الله په حضور خپل ځانونه ثابت کړو او که زمونږ انجیل
٤ پټ شوی دی نو په هلاکیدونکو کښې پټ شوی دی هغوی چه په دوی
کښې د دې جهان خدای د ناایمانانو د هغوی ړانده کړل تا چه روښنائي
د انجیل د جلال د مسیح هغه چه صورت د الله دی پر دوی نه خپرېږي
٥ ځکه چه مونږ په خپلو ځانو وعظ نه کوو بلکه په مسیح یسوع خداوند
٦ و خپل ځانونه د یسوع د پاره ستاسې غلامان یو ځکه هغه الله چه
وئیل چه په تیارۍ کښې نور وځلیږي دا هغه دی چه زمونږ په زړونو
کښې وځلیده د پاره د روښانولو د معرفت د جلال د الله د یسوع مسیح
په څېرې نه
٧ لیکن مونږ دا خزانه په خاورینو لوښو کښې لرو تا چه بزرګي د

چه جامي وباسو بلکه دا چه دَپاسَ ئي پري .واغوندو تاچه مړيدونکي له
ژوندِي و نغړدلي شي ۵ او هغه څوک چه مونږ ئي دَدي دَپارَ جوړ کړلو ۵
هغه الله دَي چه مونږ ته ئي دَ هغه روح بيعانه هم راکړه ۶ پس مونږ ۶
هر وقت خاطر جمعَ يُو او پوهيږُو چه ترڅو پوري چه په جُسي کښ استوګي
يُو له خداوند نه آواره يُو ۷ ځکه چه په ايمان سره نه چه په بينائي ۷
سره ګرزو ۸ نو خاطر جمعه يُو او مونږ دا زيات ښه ګڼړو چه له جُثي ۸
آواره شو او دَ خداوند څخه استوګي شو ۹ دَدي دَپارَ آرزومند يُو چه ۹
که استوګي يو که آواره يو خو چه دَده خوښ شُو ۱۰ ځکه چه لازم دِي چه ۱۰
مونږ ټول دَ مسيح دَعدالت دَ تخت دَ وړاندِ حاضر کړي شُو تاچه
هر يو هغه څه چه دَ جُسي په واسطه ئي کړي دِي که نيک وِي که بد
يو ئي بيي
۱۱ پس چه مونږ دَ الله په ويرې پوه شولو نو سړي لمسُوو ليکن الله ۱۱
ته ظاهر شولو او زه اميد لرم چه ستاسي په تميزونو کښ به هم ظاهر
شو ۱۲ بيا دَ خپلو ځانو دَپارَ تاسي ته سفارش نه کوو بلکه تاسي ته دَخپل ۱۲
ځان دَپارَ دَ فخر کولو تابو درکوُو تاچه تاسي لره څواب وِي دَ هغو خلقو
دَ وړاندِ چه په ظاهر فخر کوِي نه په زړه کښ ۱۳ نو که مونږ بيخوده يُو ۱۳
الله لره يُو او که هوښيار يُو نو تاسي لره ۱۴ ځکه چه محبت دَ مسيح مونږ ۱۴
ګير کوِي چه مونږ داګڼړو چه هر کله چه يَو دَ ډيرو دَپارَ مړ شه نو په
يقين سره ټول مړه شول ۱۵ او دَي دَ ټولو دَپارَ مړ شه تاچه ژوندِي ۱۵
پس له دغه نه دَ خپلو ځانونو دَپارَ بيا ژوندون و نه کړي بلکه هغه لره
چه دَدوِي دَپارَ مړ شه او پورته شه ۱۶ نو مونږ پس له دي نه هيڅوک ۱۶
موافق دَ صورت نه پيژنو او اګر که مونږ مسيح دَ صورت په طور وَ پيژاند
ليکن پس له دي ئي نه پيژنو ۱۷ هسي چه که څوک په مسيح کښ وِي نو ۱۷
هغه نوِي مخلوق دي زاړه څيزونه تير شول ګوره نوِي شوِي دِي ۱۸ او ۱۸
دا ټول له هغه الله دِي چه له مونږ سره ئي دَ خپل ځان دَپارَ دَ مسيح

۱۹ په وسیلې صلحه وکړه او مونږ ته ئي خدمت دَ صلحي کولو راکړ ۱۹ یعني چه الله
په مسیح کښ وه او دنیا ته ئي له ځان سره صلحه وکړه او خطاوي دَ دوي
ئي ورودي ته ونه شمیرلي او کلام دَ صلحي کولو ئي په مونږ کیښود
۲۰ ۲۰ پس مونږ دَ مسیح دَپارَ ایلچي ګیري کوُو چه ګویا الله څمونږ په
وسیلې سوال کوي مونږ دَ مسیح دَپارَ منت کوُو چه تاسي له الله سره
۲۱ صلحه وکړئ ۲۱ ده هغه لره چه خطا ئي نه پیژندله څمونږ دَپارَ ئي خطاکار
جوړ کړ تاچه مونږ په هغه کښ صداقت دَ الله شو +

# شپږم باب

۱ ۱ نو چه مونږ دَده همکاران یوُ سوال کوُو چه تاسي فضل دَ الله
۲ عبث مه قبولوئ ۲ ځکه چه دي وایي

چه ما په مقبول وقت کښ ستا واوریدل
او دَ نجات په ورځ مې دِ مدد وکړ-ګوره

۳ اوس دَ قبولیدلو وقت دَي-ګورئ اوس دَ نجات ورځ ده ۳ او مونږ
په هیڅ څیز کښ ټُدري نه ورکوُو تاچه هغه خدمت ملامت کړي نه شي
۴ ۴ بلکه په هر کار کښ دِ خپل ځانونه لکه خدمتګاران دَ الله ثابت کړوُ
۵ په ډیر صبر کښ په سختیو کښ په حاجتونو کښ په تنګسو کښ ۵ په وهلو
کښ په قیدخانو کښ په فسادونو کښ په محنتونو کښ په بیخوابیو کښ
۶ په روژو کښ ۶ په پاکۍ کښ په علم کښ په زغم کښ په مهربانۍ کښ
۷ په روح القدس کښ په بي ریا محبّت کښ ۷ په کلام دَ رښتني کښ په قدرت
۸ دَ الله کښ دَ صداقت دَ وسلو په وسیلې په ښي او په کیڼه لاس ۸ په
وسیلې دَ جلال او دَ بي عزّتي په وسیلې دَ بدنامي او دَ نیکنامي لکه
۹ ګمراهان او مونږ رښتیني یوُ ۹ لکه ګمنامي او مونږ مشهور شوي یوُ لکه
مړیدونکي او ګوره مونږ ژوندي یوُ لکه تنبیه موندوکي او مونږ وژلي
۱۰ شوي نه یوُ ۱۰ لکه غمجن او مونږ همیشه خوشحال یوُ لکه خواران او مونږ ډیر
غنیان کوُو لکه چه هیڅ نه لروُ او دَ ټولو څیزونو مالکان یوُ

۱۱ اي قرنتیانو خموني خوله ستاسو په لوري پرانتلې شوي ده او زړه ۱۱
مو ارت شوي دي ۱۲ تاسي په موني کښ تنګ نه يئِ بلکه په خپلو کُلمو ۱۲
کښ تنګ يئِ ۱۳ نو دَري په عوض کښ داسي وايم لکه فرزندانو ته چه ۱۳
تاسي هم ارت شئِ

۱۴ له نامؤمنانو سره تر ناموافق ژغ لاندي مه شئِ څکه چه دَ ۱۴
صداقت او دَ ګناه څه موافقت دَي او دَ نور له تاريکي سره څه شراکت
دَي ۱۵ او دَ مسيح له بليعال سره څه موافقت دَي دَ مؤمن له نامؤمن ۱۵
سره څه حصّه دَه ۱۶ او دَ الله دَ مقدس له بُتانو سره څه اتفاق دي ۱۶
چه تاسي خود دَ ژوندي الله مقدس يئِ لکه چه الله ويلي دِي چه زه به
په هغو کښ واوسم او وبه ګرزم او زه به دَ هغو الله شم او دوي به زِم
امّت وِي ۱۷ دي دَپارَ

دَ هغو له مينځ نه ووزئِ او ور نه بيل شئِ
خداوند وايي
او ناپاک څيز مه مسه کوئِ
او زه به مو قبول کړم
۱۸ او زه به ستاسي پلار شم ۱۸
او تاسي به زِمِ زامن او لونړي شئِ خداوند قادر مطلق وايي *

# اووم باب

۱ پس اي عزيزانو چه موني دغه وعدي لرُو نو موني دِ خپل ځانونه ۱
له هري پليتئِ دَ جُسّي او دَ روح پاک کړُو او قدوسيت لره دِ دَ الله په
ويره کښ کامل کونکي شُو

۲ موني قبول کړئِ موني په هيڅ ظلم ونه کړ هيڅوک مو خراب کړي ۲
نه دِي موني له هيڅ طمعه ونه کړه ۳ زه دا دَ ګرم کولو دَپارَ نه وايم څکه ۳
چه ما وړاندِ ويلي دِي چه تاسي خموني په زړه کښ يئِ چه سرِه ومرو
او سرِه ژوندون وکړو ۴ څما تاسي ته ډير دَ ويلو زړورتوب دي ما لره ۴

ستاسو له جهتَ ډېر فخر دَي زه له تسلّي نه ډک شوي يم او په خپلي ټولي
تنګسيي کښې له خوښي نه مالامال يم
٥ ٥ او چه موږ مقدونيي ته راغلو نو ځموږ جسّي هيڅ آرام نه لاره
بلکه موږ له هر طرف نه ګېر شوي وُو له باهر نه جګړي له دننه
٦ دَ ويري ٦ ليکن هغه الله چه خوارانو ته دلاسا بې ورکوي دَ طيطس
٧ په راتلو ئي موږ ته تسلّي راکړه ٧ ليکن نه تش دَ هغه په راتلو سره
بلکه په هغي تسلّي هم چه دي ستاسي په سبب بېږي دلاسه کړي شه
او موږ ئي ستاسي له شوق نه خبر کړُو او ستاسو په وير او ستاسي
په غيرت چه ځما په حق کښې مو لاره تر دي حده چه زه ډېر خوشحال شوم
٨ ٨ ځکه اګر که مِ په هغه خط کښې تاسي غمجن هم کړئ پښيمان پرې نه يم اګر
که پښيمانه هم وم ځکه چه زه وينم چه هغه خط اګر که تر يو ساعت
٩ پوري غمجن کړئ ٩ اوس خوشحالي کوم نه په دي چه تاسي غمجن شوئ بلکه
په دي چه دَ توبي دَپارَ غمجن شوئ ځکه چه تاسي دَ الله دَپارَ غمجن
١٠ شوي يئ تاچه له موږ نه په هيڅ شئ کښې زيان بيا ونه مومئ ١٠ ځکه چه
هغه غم چه دَ الله دَپارَ دي دَ نجات دَپارَ بې پښيماني توبه پيدا کوي ليکن
١١ غم دَ دنيا مرګ پيدا کوي ١١ ځکه ګورئ هم دغه چه تاسي دَ الله دَپارَ غمجن
شوئ څومره کوشش ئي په تاسي کښې پيدا کړ بلکه عذرخواهي بلکه غصّه
بلکه ويره بلکه شوق بلکه غيرت بلکه بدل آخستل په هرڅيز مو خپل
١٢ ځانونه ثابت کړل چه تاسي په دغې مقدّمي کښې پاک يئ ١٢ نو هم اګر که ما
تاسي ته وليکل خو نه دَ هغه ظالم دَپارَ نه دَ هغه مظلوم بلکه دي دَپارَ
چه هغه کوشش ستاسي چه ځموږ دَپارَ دي دَ الله په حضورتاسي ته ظاهر
١٣ شي ١٣ او دَدي دَپارَ مو تسلّي بيامونديلي دَه ليکن موږ په خپلي تسلّي کښې
دَ طيطس په خوښئ ډېر زيات خوشحال شولو چه دَده روح ستاسي ټولو
١٤ په سبب تازه شه ١٤ ځکه چه که ما ده ته ستاسي په حق کښې دَ څه
شي فخر کړي دَيٓ نو شرمنده نه شوم بلکه لکه چه ټولي خبري موږ تاسي

تە پە رښتيا سره وويلي هم هسې خموږ فخر دَ طيطس دَ وړاندِ رښتني
شه ١٥ او دَ هغه کُلمي سوي په تاسي باندي نور هم زيات شه چه ستاسي ١٥
ټولو تابعدارِي په ياد لري چه تاسي دي څرنګ په وېره او په رپېدلو سره
قبول کړ ١٦ پس زه خوښ يم چه په هرِي خبري کښ له تاسي خاطر جمع يم + ١٦

# اتم باب

١ او اي ورونړو موږ تاسي خبروو دَ الله له فضلَ چه دَ مقدونيي ١
کليسيانو ته ورکړي شوي دَي ٢ چه دَ تنګسيي په ډېر آزماېښت کښ ٢
خوشحالِي دَ دوي ډېره وه او خوارِي دَ دوي چه ژوره وه. دولت دَ اخلاص
دَ دوي ئي زيات کړ ٣ ځکه چه زه شاهدِي لرم چه دوي په قدر دَ طاقت ٣
خپل بلکه له طاقت نه زيات په خپلي خوښي سره ورکړه ٤ او په ٤
ډېر منت سره ئي موږ ته سوال وکړ دَپارَ دَ فضل او دَ شراکت دَ خدمت
دَ پاکانو ٥ او نه لکه چه موږ اميد لاره بلکه خپل ځانونه ئي وړاندِ ٥
وخداوند ته ورکړه او په ارادي دَ الله سره ئي موږ ته وسپارل ٦ تر دي ٦
حده چه موږ طيطس ته سوال وکړ چه لکه ده وړاندِ شروع کړي وه
هم هسي هغه نعمت ستاسي په مينځ کښ تمام کړي ٧ ليکن تاسي ٧
لکه چه په هري خبري کښ زياتي توب لرئِ په ايمان کښ په کلام کښ
او په علم کښ او په ټول کوشش او په هغه محبّت چه له موږ سره
مو دي هم هسي په دي نعمت کښ زيات شئِ ٨ زه دا په طور دَ حکم نه ٨
وايم بلکه چه دَ نورو دَ کوشش په وسيلي ستاسي دَ محبّت اخلاص
وازمايم ٩ ځکه چه تاسي خموږ دَ خداوند يسوع مسيح فضل پېژنئِ چه دَي ٩
که هرڅو غنِي دَي ليکن ستاسي دَپارَ خوارشه تاچه تاسي دَده په خوارِي
کښ غنيان شئِ ١٠ او زه په دي کښ صلاح درکوم ځکه چه هم دغه ستاسي ١٠
دَپارَ لايقه ده چه تاسي چه پروسږ کال نه تش په کولو کښ بلکه په
ارادي کولو کښ مو هم وړاندِ شروع وکړه ١١ نو اوس تاسي هغه عمل تمام ١١
هم کړئِ لکه چه اراده دَ کولو مو په ښېړي سره وه هم هسي دِ په قدر

۱۲ دَ وس غخپل ستاسي تماموَل وِي ۱۲ ځکه چه که بيړه موجوده وِي نو موافق
۱۳ دَ هغه چا چه لري مقبول دَي نه موافق دَ هغه چه نه لري ۱۳ نه دا چه نورو لره آرام او تاسي لره تنگسيا بلکه په
برابري سره تر دي حده چه په دي وقت کښي زياتوالي ستاسي دَ هغو دَ
۱۴ کموالي دپاره وشي ۱۴ تا چه دَ هغو زياتوالي ستاسي دَ کموالي دپارَ وشي هسي
۱۵ چه سره برابري وشي ۱۵ لکه چه ليکلي دي چه هغه چا چه ډير جمع کړل
دَ هغه زياتوالي نه وه او هغه چه لږ ئي جمع کړل هيڅ کموالي ئي نه وه
۱۶ ۱۶ ليکن هغه الله لره دِ شکر وِي چه دا کوشش ئي ستاسي په
۱۷ باب دَ طيطس په زړه کښي واچاوه ۱۷ چه ده خو سوال ځما قبول کړ ليکن
۱۸ ډير کوشش کونکي په خپل خوښي سره تاسي ته در ووت ۱۸ او موږ له
ده سره هغه ورور واستاوه چه صفت ئي په انجيل کښي دَ ټولو کليسيو
۱۹ په مينځ کښي دَي ۱۹ او نه تش دا بلکه له کليسيو نه هم غوره کړي شوي وه
چه ځموږ دَ سفر ملګري شي په دي فضل کښي چه له موږ نه خدمت
۲۰ کړي شي دَ خداوند دَ جلال او ځموږ دَ بيړي دَپارَ ۲۰ له دي نه په ډېره
شولو هسي نه چه څوک مو ملامت کړي په ډکوالي دَدي خدمت چه له
۲۱ موږ نه کړي شي ۲۱ ځکه چه موږ وړاندي په ښايسته څيزونو فکر کوو
۲۲ نه تش دَ خداوند دَ وړاندي بلکه دَ سړيو دَ وړاندي هم ۲۲ او له هغو
سره مو هغه ورور خپل واستاوه چه موږ په ډيرو کارونو کښي ډير واره
وآزمايه چه هغه کوشش کونکي دَي مګر اوس دَي دَ هغي ډيري تکيي
۲۳ په سبب چه په تاسي ئي لري ډير زيات کوشش کونکي دَي ۲۳ او دَ طيطس
په باب دا چه ځما شريک او ستاسي دَپارَ مِ همکار دَي يا ځما ورونړه چه
۲۴ دي رسولان دَ کليسياؤ او دَ مسيح جلال دِي ۲۴ پس دليل دَ خپل
محبت او ځموږ دَ فخر چه ستاسي په باب دي هغو ته او دَ کليساؤ دَ
وړاندِ ثابت کانړِئ *

## نهم باب

۱ ۱ ځکه چه دَ هغه خدمت په باب چه دَ پاکانو دَپارَ دَي هغه له ما نه

۲ زیات وِیلِ دَي چه تاسو ته يې ولیکم ۲ ځکه چه زه ستاسي په هغې بیړي
پوهیږم چه دَ هغه په سبب دَ مقدونیانو په مخ کښ زه ستاسي فخر
کوم چه آخیه له پروسږکال نه تیاره کړي شوي دَه او ستاسي غیرت
۳ ډیر خلق لمسولي دي ۳ لیکن ما هغه ورونړه واستول تا چه څمونږ فخر
چه په دې خبرهٔ کښ مو ستاسي په باب وکړ عبث نه شي لکه چه
۴ ما ویلي دي تاسي تیار شئ ۴ هسي نه چه که چیري مقدونیان راسره
راشي او تاسي ناتیارَ بیاموي نو نه وایم چه تاسي بلکه مونږ به
۵ دَدې فخر په باور کولو شرمنده شو ۵ نو دَدې دَپارَه مې ضرور وګڼل
چه ورونړو ته سوال وکړم چه دوي تاسي ته درشي او ستاسي هغه
برکت چه وړاندې وعده یې کړي شوي وه تیار کړي تا چه دغه تیار وي
داسي لکه چه برکت او نه لکه چه طمع
۶ ۶ غرض دا چه هغه څوک چه په صرفي سره کري په صرفي سره به
هم وریبي او هغه څوک چه په برکتونو سره وکري په برکتونو سره به
۷ وریبي ۷ هر څوک لکه چه په زړه کښ نیت کوي ورکوي دِ نه په زغم
نه په ضرورت سره ځکه چه الله له خوشحالي کونکي سره محبت لري
۸ ۸ او هغه الله قادر دَي چه تاسي لره نعمت در زیات کړي تا چه تاسي
په هري خبري کښ مدام بټول کفایت لرونکي په هر نیک عمل کښ زیات
۹ شئ ۹ لکه چه لیکلي شوي دي چه

هغه شندلي دي هغه محتاجانو ته ورکړي دي
دَ هغه صداقت تر ابد پوري باقي دَي

۱۰ ۱۰ هغه چه کرونکي ته تخم او خورونکي ته ډوډۍ ورکوي تاسي ته به هم
تخم درکړي او ډیر به یې کړي او ستاسي دَ صداقت حاصل به زیات
۱۱ به زیاتو کړي ۱۱ چه په هر څیز کښ غنیان شوي پوره اخلاص وکړئ
۱۲ چه دا څمونږ په وسیلي سره دَ الله شکرګذاري کیږي ۱۲ ځکه چه دَدې
خدمتګذاري ادا کول نه تش دَ پاکانو حاجتونه پوره کوي بلکه دَ الله دَپارَ

١٣ دَ ډیرو شکرګذاریو په وسیلي پریواني هم ورکوي ١٣ یعني چه هغوي دَدي خدمت
دَ دلیل په وسیلي دَ الله تمجید وکړي چه تاسي دَ مسیح دَ انجیل دَ اقرار
١٤ تابع یئ ١٤ او شراکت دَ اخلاص ستاسو هغوي لره او ټولو لره او هغوي
په خپلو دعاؤ سره ستاسي دَپارَ تاسي ته مشتاق دي له جهت دَ هغه لوي
١٥ فضل دَ الله چه په تاسي باندي دي ١٥ پس شکر الله لره دَده دَ هغه
بخشش چه له بیان بهر دي ÷

# لسم باب

١ ١ او زه پولس په خپله چه روبرو خو په تاسي کښې خوار یم لیکن پسي شا
په تاسي زړورتوب کوم په وسیلي دَ حلیمۍ او دَ نرمۍ دَ مسیح تاسو ته سوال کوم
٢ ٢ او آرزو لرم چه هسي نه وي چه روبرو شم زړورتوب وکړم په هغه
باور چه زه ګمان کوم چه جرأت به یې کښې وکړم په هغو کسانو چه مونږ
٣ داسي ګڼړي چه مونږ دَ جسې په موافق ګرزو ٣ ولي سونږ اګر که په جسې
٤ ګرزو لیکن دَ جسي په طور نه جنګیږو ٤ دي دَپارَ چه څمونږ دَ جنګ
٥ وسله جسماني نه ده بلکه قادره په الله سره دَ قلاؤ په نړولو ٥ نړونکي
دَ خیالونو او دَ هري بلندۍ چه خپل ځان په خلاف دَ معرفت دَ الله
٦ لوړ کړي ٦ او بندونکي دَ هري پوهي و تابعدارۍ دَ مسیح ته تیاري کونکي
چه له ټولو نافرمانیو بدله واخلو هرکله چه تابعدارۍ ستاسي کامله شي
٧ ٧ ګڼړه تاسي په روبرو څیزونو نظر کوئ څه که څوک دا باور وکړي
چه زه دَ مسیح یم دا دِ هم له ځانه وګڼړي لکه چه دي دَ مسیح دَي مونږ
٨ هم دَ مسیح یو ٨ ځکه چه که هر څو زیات فخر هم وکړم په دي اختیار
څمونږ چه خداوند ستاسي دَ بناکولو دَپارَ نه ستاسي دَ نړولو دَپارَ راکړ
٩ نو شرمنده به نه شم ٩ هسي نه چه دا ظاهره شي چه ګوندي زه مو
١٠ په خطونو سره ویروم ١٠ ځکه چه وایي چه دَده خطونه درانه او قوت ناک
١١ دي لیکن حضور دَ صورت ئي ضعیف او خبره ئي سپکه ده ١١ داسي
سړي دِ دا وګڼړي لکه چه پسي شا مونږ دَ خطونو په وسیلي په خبرو

کښې یو هم هسې چه حاضر شو به عمل کښې یو ۱۲ ځکه چه جرأت نه کوو چه خپل ځانونه له هغوند وشمیرو ۱۲
یا برابر کوو چه دَ خپلو ځانونو سفارش کوي لیکن هغوي چه خپل ځانونه په خپله اندازه
کوي او خپل ځانونه دَ خپلو ځانونو سره برابروي بې پوهې دي ۱۳ مګر مونږ ۱۳
به بې اندازې فخر و نه کړو مګر دَ هغې پیمانې دَ قانون په موافق چه الله
مونږ لره په پیمانې سره ووېشه چه تر تاسي پورې هم ورسېږي ۱۴ ځکه ۱۴
چه مونږ خپل ځانونه له حد نه بهر نه اوږدوو چه ګویا کښې تر تاسي
پورې نه یو رسیدلي ځکه چه مونږ دَ مسیح په انجیل کښې تاسي ته
ورسیدلو ۱۵ او مونږ بې اندازې دَ نورو په محنتونو فخر نه کوو لیکن امید ۱۵
لرو چه هرکله چه ستاسي دَ ایمان زیاتوالي وشي نو به مونږ موافق دَ
قانون خپل ستاسي په منځ کښې بې حده زیات لوي شو ۱۶ تا چه ستاسي ۱۶
تر بهر حدونو پورې به دَ انجیل زیری ورکړو او نه چه په پردي قانون
به تیارو شویو څیزونو فخر وکړو ۱۷ لیکن هغه څوک چه فخر کوي په خداوند ۱۷
دِ فخر کوي ۱۸ ځکه چه هغه څوک چه خپل ځان ثابتوي قبول نه دي بلکه ۱۸
هغه چه خداوند یې ثابت کړي ✣

## یولسم باب

۱ کاشکي چه تاسي زما دَ کم‌عقلۍ زغم وکړئ هو تاسي زما زغم وکړئ ۲ ځکه ۱ ۲
چه زه دَ الله په غیرت سره په تاسي غیرت کوم ځکه چه تاسي مې یو سړي
لره وکوژدلئ تاسي یوه پاکدامنه پېغله دَ مسیح په حضور ودروم ۳ لیکن ۳
زه ویرېږم هسي نه وي لکه چه مار په خپلي ټګۍ سره حوّا وغولوله هم
هسي ستاسي ذهنونه له هغې صفائۍ نه چه په مسیح کښې ده خراب کړي
شي ۴ ځکه چه که څوک راشي او په بل یسوع وعظ کوي چه مونږ یې ۴
وعظ کړي نه دي یا که چرې تاسي بل روح چه تاسي اخستلي نه دي وا
یې خلئ یا بل انجیل چه تاسي قبول کړي نه وه نو ښه مو وکړل چه زغم
مو وکړ ۵ ځکه چه زه ګڼم چه زه له ډېرو لویو رسولانو نه هیڅ ورستو نه یم ۵
۶ او که په کلام کښې هم اُمّي یم لیکن په علم کښې نه یم لیکن مونږ په ۶

۷ تولو خبرو کښ دَ تولو په مینځ کښ تاسي ته ښکاره کړ ۷ یا ګنړه خطا مِ
وکړه چه خپل ځان مِ خوار کړ تاچه تاسي لوي شيئ ځکه چه ما زیري دَ
۸ انجیل دَ الله تاسي ته ویړیا واوراوه ۸ ما نوري کلیسیي وشوکولي چه ستاسي
۹ دَ خدمت دَپارَ مِ مزدوري تري واخسته ۹ او چه زه تاسو څخه حاضر وم
او محتاج وم نو هم په هیچا مِ بار نه کیښود ځکه چه ځما احتیاج هغو
ورونړو پوره کړ چه له مقدونیي راغلل او په هري خبري کښ خپل ځان مِ
۱۰ له بار پدلو په تاسي باندي وساته او وبه يي ساتم ۱۰ حق دَ مسیح په ما کښ
شته دي چه دا فخر به دَ اخائیي په اطرافو کښ له ما نه بند کړي نه شي
۱۱ ۱۲ ۱۱ ولي چه زه له تاسي سره محبت نه لرم څه الله پوهیږي ۱۲ لیکن هغه
څه چه زه يي کوم هغه به کوم ځکه چه له هغو نه چه وار غواړي وار به
پریکړم تاچه په هغه څه کښ چه فخر کوي څمونږ په شان وموندلي شي
۱۳ ۱۳ ځکه چه دا رنګ کسان دروغژن رسولان ټګان کارکوونکي دي چه خپل
۱۴ شکلونه دَ مسیح دَ رسولانو په شان بدلوي ۱۴ او هیڅ تعجب نشته ځکه چه
۱۵ شیطان هم په خپله خپل شکل دَ نور په فرښتي بدلوي ۱۵ نو لویه خبره نه
ده که چري دَده خدمتکاران خپل شکلونه دَ صداقت دَ خدمتکارانو په شان
بدل کړي هغوي چه انجام دَدوي به دَ دوي دَ عملونو په شان وي
۱۶ ۱۶ بیا وایم چه ما دِ هیڅوک ناپوهه نه ګڼړي او که نه نو دَ ناپوهه
۱۷ په شان مِ قبول کړيئ تاچه زه هم لږ څه فخر وکړم ۱۷ هغه څه چه وایم
موافق دَ خداوند نه وایم بلکه لکه په بي وقوفي سره په دي باور دَ فخر
۱۸ کښ وایم ۱۸ او هرکله چه ډیر په طور دَ جسمي فخر کوي زه به هم فخر
۱۹ وکړم ۱۹ ځکه چه تاسي پوهان يئ په خوښي سره دَ ناپوهانو برداشت کوئ -
۲۰ ۲۰ ځکه چه تاسي برداشت کوئ که چري څوک تاسي غلامان جوړوي که څوک
مو ونغړي که څوک مو ونیسي که څوک ځان غټوي که څوک مو په مخ باندي
۲۱ ووهي ۲۱ زه دا دَ بي عزتي په طور وایم چه ګویا مونږ ضعیفان یو لیکن
په هغي خبري کښ چه څوک جرأت کوي دا په ناپوهي سره وایم زه هم جرأت

کوم ٢٢ کنزه دوي عبراني دي زه هم یم دوي اسرائیلي دي زه هم یم دوي ٢٢
دَ ابراهیم اولاد دي زه هم یم ٢٣ دوي دَ مسیح خدمتکاران دي زه هم دَ ٢٣
لیوني په شان وایم زه زیات یم په محنتونو کښې ډیر زیات په قیدونو کښې
ډیر زیات په کوړو کښې له حده زیات په مرګونو کښې ډیر ځله ٢۴ ما له ٢۴
یهودیانو پنځه واره یو کم ځلوېښت کوړې وخوړې ٢٥ دري واره په لښتو ٢٥
ووهلي شوم یو وار سنګسار شوم دري واره جهاز را لاندې مات شه
یو شوا روز مې په دریاب کښې تیر کړي دي ٢٦ زه په سفرونو کښې ډیر ٢٦
ځله دَ دریابونو په خطرو کښې دَ غلو په خطرو کښې دَ خپل قوم په خطرو
کښې دَ غیرو قومونو په خطرو کښې دَ ښهر په خطرو کښې دَ بیابان په
خطرو کښې دَ قارې دریاب په خطرو کښې دَ دروغژنو وروڼو په خطرو کښې
٢٧ په محنت او په مشقت کښې په شوګیرو کښې ډیر ځله په لوږې او ٢٧
په تنده کښې په روژو کښې ډیر ځله په ساړه او په بربنډتوب کښې ٢٨ علاوه ٢٨
له دې خیزونو نه چه بهر دي دَ ټولې کلیسیې اندیښنه چه هره ورځ په ما
ده ٢٩ څوک ضعیف کیږي چه زه نه ضعیف کیږم څوک بدرې خوري چه زه ٢٩
نه سوزم ٣٠ که فخر کول مناسب دي نو دَ خپلو ضعیفو خیزونو فخر به وکړم ٣٠
٣١ هغه الله او پلار دَ خداوند یسوع مسیح چه تر ابده پوري مبارک دی ٣١
پوهیږي چه زه دروغ نه وایم ٣٢ په دمشق کښې هغه حاکم دَ ارتیس ٣٢
بادشاه په دې ارادې چه ما ونیسي دَ دمشقیانو په ښهر ئې څوکۍ کښینوله
٣٣ او زه له کړکۍ نه په ټوکرۍ کښې له دیواله ښکته ښوړند کړې شوم او ٣٣
دَ دوي له لاسونو خلاص شوم ÷

## دولسم باب

١ فخر کول بایده دې البته مناسب نه دي نو زه به رویاو او مکاشفو ١
دَ خداوند ته راشم ٢ زه په مسیح کښې یو سړي پیژنم چه وړاندې له څورلسو ٢
کالو نه که په صورت کښې نه پیژنم یا بهر له صورت ئې نه پیژنم الله
ئې پیژني هغه سړي تر دریمه آسمان پوري راښکلي شه ٣ او زه هسې ٣

سړي پېژنم یا په صورت یا بهر له صورت نه ئي پېژنم الله پېژني ۴ چه فردوس
۵ ته رابنکلي شه او خبري ئي واوریدلي چه سړي ته ئي ویل روا نه دي ۵ په
هسي کس به زه فخر وکړم لیکن دَ خپل ځان په باب به بي دَ ضعیفو
۶ فخر و نه کړم ۶ ځکه چه که زه فخر کول غواړم ناپوهه به نه شم ځکه چه
حق وایم لیکن پرهیز کوم هسي نه چه څوک څما په باب ګمان وکړي زیات
۷ له هغه چه په ما کښ ئي ویني یا ئي رانه اوري ۷ او چه له زیات والي دَ
مکاشفو نه سرهواني و نه کړم یو اغزي په جسي کښ راکړي شه قاصد دَ
۸ شیطان چه ما په سوکونو وهي تا چه سرهواني و نه کړم ۸ دَدي دَپار مِ
۹ دري واره هغه خداوند ته زاري وکړه چه هغه دِ له ما نه لري شي ۹ او ما ته
ئي وویل چه څما فضل تا لره بس دي ځکه چه قوت څما په ضعیفي کښ
کامل کیږي نو زه به په ډیري خوشحالي سره له خپلو ضعیفو زیات فخر وکړم
۱۰ تا چه قوت دَ مسیح په ما باندي کیږدي شي ۱۰ دي دَپار خوشحالیږم په
ضعیفو په زیاتونو په حاجتونو په ربړونو په تنګسو دَپار دَ مسیح هر کله
چه زه ضعیف یم نو هغه وقت توانا یم
۱۱ ۱۱ ناپوهه شوم تاسو په ما جبر وکړ ځکه چه بایده وه چه زه له
تاسي نه وستایلي شم ځکه چه زه په هیڅ شي کښ له ډیرو لویو رسولانو
۱۲ ورستو نه یم اګر که زه هیڅ څیز نه یم ۱۲ ځکه چه نخښي دَ رسولانو ستاسو
په مینځ کښ په ډیر صبر په نخښو او په عجائباتو او په قوتونو سره
۱۳ وکړي شوي ۱۳ ځکه چه هغه کوم شي دَي چه په کښ له نورو کلیسو
کم کړي شوئ مګر دا چه ما په تاسي بار نه کیښود دا ظلم را وبخښئ
۱۴ ۱۴ ګوره دا دریم وار دَي چه تیار یم چه تاسي ته درشم او به تاسي
بار کښي نه ږدم ځکه چه زه نه ستاسي څیزونه بلکه تاسي لټوم ځکه چه
بایده نه دِي چه زامن دَ پلار او دَ مور دَپار ذخیره وکړي بلکه پلار او
۱۵ مور دَ زامنو دَپار ۱۵ او زه به ډیري خوشحالي سره ستاسي دَ ځانونو دَپار
خرڅ کوم او خرڅ به کړي شم هر څو مره چه په تاسي زیاته مینه کوم هو مره

۱۶ مینه کمه وېنم ۱۶ لیکن داسي دِ وي ماخو په تاسي بار ینبي نه دَي مکر
۱۷ چه حیله کونکي وم نو تاسي مِ په مکر سره ونیولئ ۱۷ کنزه ما په یوه
۱۸ له هغوي نه چه در وامِ ستول له تاسو مِ طمعَ وکړه ۱۸ طیطس تهِ مِ سوال
وکړ او له ده سره مِ ورور واستاوه نو کنزه طیطس تاسو ته طمعَ وکړه
هم په هغه روح هم په هغو پلونو و نه کرزیدلو څه؟
۱۹ ۱۹ کنزه بیا کمان کوئ چه تاسو ته خپل حجّت جوړوو دَ الله دَ وړاندِ
په مسیح کښ خبري کوو لیکن هغه ټول اي محبوبانو ستاسو دِ ښاکولو
۲۰ دَپارَ دِي ۲۰ زه ویرېږم هسي نه وي چه درشم او داسي مو بیا نه مومم
لکه چه زه غواړم او تاسو مِ داسي مومئ لکه چه نه غواړئ هسي نه وي
چه څه شان جکړي او غیرتونه او غضبونه او کوندئ او تهمتونه او چغلخورئ
۲۱ او کبرجنئ او فسادونه وي ۲۱ هسي نه چه زه درشم خپل الله مِ تاسو
څخه خوار کړي او ویر وکړم په هغو ډېرو چه وړاندِ ئ خطا وکړه او له پلیتئ
او له زنا او له فسقَ چه وئ کړل توبه کار نه شول *

## دیارلسم باب ·

۱ ۱ دا دریم وار دَي چه زه تاسي ته درځم دَ دوو یا دریو شاهدانو په خولي
۲ هر خبره به ثابته شي ۲ ما وړاندي وویل او وړاندي وایم لکه چه دویم
وار حاضر وم او اوس چه پسي شا یم هغو ټولو ته چه وړاندِ ئ خطا
وکړه او هغو نورو ټولو ته لیکم چه که زه بیا درشم شفقت به و نه کړم
۳ ۳ هرکله چه تاسي دَدي دلیل غواړئ چه مسیح په ما کښ خبري کونکي
۴ دَي چه تاسي لره ضعیف نه دي بلکه په تاسي کښ قوّتناک دَي ۴ او
چه له ضعیفي نه په صلیب کړي شه لیکن په قوّت دَ الله ژوندي دَي
نو مونږ هم په هغه کښ ضعیفان یو لیکن تاسو لره به په قوّت دَ الله
۵ له ده سره ژوندِي شُو ۵ خپل ځانونه وآزمائي چه په ایمان کښ يئ که
نه خپل ځانونه کره کړئ یا تاسي خپل ځانونه نه پېژنئ چه یسوع مسیح
۶ په تاسي کښ شته دي که تاسي مردود نه يئ ۶ زه امید لرم چه

٧ تاسي به پوهیږئ چه مردود نه یو ٧ او موږ الله ته دُعا کوو چه تاسي
هیڅ بدي و نه کړئ نه دي دَپارَ چه موږ مقبول ښکاره شُو بلکه چه
٨ تاسي ښایسته کړي وِي هرڅو لکه مردود یُو ٨ ځکه چه موږ نه توانیږو
٩ چه په خلاف دَ حق څه وکړُو بلکه دَحق دَپارَ ٩ ځکه چه موږ خوشحالیږو
هغه وخت چه موږ ضعیفان او تاسي قوتناک یئ دي دَپارَ هم دُعا کوُو
١٠ چه تاسي هم کامل شئ ١٠ ځکه پسي شا لیکم تاچه حاضر شم په
تُندِي سره خبره و نه کړم په موافق دَ هغه اختیار چه خداوند دِ
بنا کولو دَپارَ نه دَ نړولو دَپارَ راکړي دَي
١١ ١١ اٰخر دا دَي اي ورونړو په خیر اوسئ کامل شئ تسلّي مومئ په
یو ذهن سره خبري کوئ په سلامتي کښ ژوندون کوئ او الله دَ محبت
١٢ او دَ سلامتي به له تاسي سره وِي ١٢ یو بل ته په پاکو ښکلولو
سره سلام کوئ
١٣ ١٣ ټول پاکان په تاسي سلام وایي
١٤ ١٤ فضل دَ خداوند یسوع مسیح او محبت دَ الله او شراکت دَ
روح القدس دِ له تاسي ټولو سره وِي آمین *

# خط دَ پولس رسول گلاتیانو ته

## اول باب

۱ پولس رسول نه له سړو نه دَ سړو په وسیلي سره بلکه په وسیلي ۱
دَ یسوع مسیح او دَ الله پلار چه دي ئ له مړو پورته کړ ۲ او ټول وروڼه ۲
چه له ما سره دِي وکلیسو دَ گلاتیي ته ۳ فضل او سلامتي دِ له الله ۳
پلار نه او ځمونږ له خداوند یسوع مسیح نه په تاسو باندي وِي ۴ هغه ۴
چه خپل ځان ئ ځمونږ دَ خطاؤ دَپارَ وښانده تاچه مونږ له دي شریري
حاضري دنیا آزاد کړي موافق دَ ارادي دَ الله او ځمونږ پلار ۵ چه ده لره ۵
دِ تر ابدالاباد پوري جلال وِي آمین
۶ زه تعجب کوم چه تاسي دومره په تلوار سره له هغه نه چه ۶
تاسي ئ دَ مسیح په فضل سره وبللئ وگرزيدئ دَ بل انجیل په لوري
۷ هغه خو بل نه دَي مگر ځني شته دِي چه تاسي لړزوي او غواړي چه ۷
دَ مسیح انجیل واړوي ۸ لیکن که مونږ یا فرښته له آسمانه دَ انجیل زیري ۸
تاسي ته درکړو بي له هغه چه مونږ تاسو ته زیري کړي دي هغه دِ ملعون
وِي ۹ لکه چه مونږ وړاندِ ویلي دِي هم هسي اوس بیا وایم چه که څوک ۹
تاسي ته دَ بل انجیل زیري درکړي بي له هغه نه چه قبول موکړ ملعون
دِ وِي ۱۰ اوس زه سړي هم راضِي کړم که الله یا دَ سړو رضامندِي وغواړم ۱۰
که ما تر اوسَ پوري سړي راضِي کولي نو دَ مسیح غلام به نه وم
۱۱ مگر اي وروڼو زه تاسو پوهوم چه هغه انجیل چه ما تاسي ۱۱
ته زیري پري درکړي دي دَ سړو په موافق نه دَي ۱۲ دي دَپارَ چه هغه ۱۲
مِ نه له سړو بیاموند نه مِ زده کړ بلکه دَ یسوع مسیح په کشف سره
۱۳ تاسو خوځما وړاندِني خوي چه په یهودِي مذهب کښ وم اوریدلي دَي ۱۳
چه ما کلیسیه دَ الله څومره ډیره ربړوله او ویجاړوله ۱۴ او دَ یهودیانو یه ۱۴

دین کښې دَ خپل قوم له ډېرو همزولو زیاتېدم او دَ خپلو پلرونو او نیکونو
۱۵ په روایتونو ډېر غیرتناک وم ۱۵ لیکن هرکله چه الله چه زه ئې دَ خپلې
مور له ګېډې نه غوره کړم او په خپل فضل سره ئې وبللم دا خوښه
۱۶ کړه ۱۶ چه په ما کښې خپل زوی ښکاره کړي تا چه دَ هغه زیری غیر
قومونو ته ورکړم نو سمستي مې له غوښې او له وینې سره مصلحت و نه کړ
۱۷ ۱۷ او نه اورشلیم ته هغوی ګخه چه وړاندې له ما نه رسولان وُو
وختلم مګر عربو ته روان شوم او بیا دمشق ته راستون شوم
۱۸ ۱۸ بیا دری کاله پس دَ پطرس دَ ملاقات دَپارَ اورشلیم ته وختم
۱۹ او پنځلس ورځې ورځخه پاتې شوم ۱۹ لیکن له رسولانو مې بل هیڅوک
۲۰ و نه لید بې له یعقوبَ وروړ دَ خداوند ۲۰ هغه خبرې چه زه ئې تاسې
۲۱ ته لیکم ګوره چه دَ الله دَ وړاندې نه په کښې دروغژن کیږم ۲۱ پس
۲۲ له هغه دَ شام او دَ کلیکې ملکونو ته راغلم ۲۲ او کلیسو دَ مسیح چه
۲۳ په یهودیه کښې دې په مخ سره خو ناپېژندګلوی وم ۲۳ بې له دې چه
دوی اوریدلې وُو چه هغه چه وړاندې ئې مونږ ربړولو اوس دَ هغه ایمان
۲۴ زیری کوې چه وړاندې ئې برباد کاوه ۲۴ او دوی ځما په باب دَ الله تمجید کاوه +

# دویم باب

۱ ۱ نو پس له څورلسو کالو له برناباس سره بیا اورشلیم ته وختم او
۲ طیطس مې هم راسره واخست ۲ او ځما ختل دَ کشف په موافق وه او
ما هغه انجیل چه وعظ ئې په غیرِ قومونو کښې کوم هغوی ته بیان کړ
لیکن ګوښې معتبرانو ته هسې نه چه عبث وزغلیږم یا زغلیدلې وم-
۳ ۳ لیکن په طیطس باندې چه ځما ملګری وه او یونانی وه زور و نه شه
۴ چه خته شي ۴ او دا دَ دروغژنو وروڼو په سبب چه پټه راننوتلې وُو
چه ځما آزادی لره چه مونږ له په یسوع مسیح کښې موندلې شوې وه په
۵ جاسوسې سره معلومه کړې دي دَپارَ چه مونږ مریونه کړي ۵ چه مونږ
دوی ته یو ساعت هم په تابعدارۍ سره نرم نه شولو تا چه ربښتیې دَ

۶ انجیل په تاسي کښې مضبوطه پاتي شي ۶ بیا له هغو معتبرانو سره
(هر څه چه وُو خو وُو څما هیڅ غرض نشته الله دَ سړي مخ نه کوي)
۷ څکه چه هغو معتبرانو ما ته هیڅ مصلحت رانه کړ ۷ بلکه په خلاف
له هغه نه چه دوي ولیدل چه زه په انجیل دَ نامختونو امانتدار شوي
۸ وم لکه چه پطرس دَ مختونو دَپاره ۸ څکه هغه چه دَ مختونو دَ رسالت
دَپاره ئي په پطرس کښې اثر وکړ دَ غیر قومونو دَپاره ئي په ما کښې هم اثر
۹ وکړ ۹ او هرکله چه یعقوب او کیفاس او یوحنّا چه معتبري ستني وي دَ غه
فضل چه ما ته راکړي شوي وو معلوم کړ نوما او برناباس ته ئي ښي لاس
۱۰ دَ شراکت راکړ چه مونږ غیر قومونو او دوي مختونو ته لاړ شي ۱۰ تش دا چه
مونږ مفلسان په یاد لرو نو ما هم هغه خاص کار کولو ته بیړه وکړه
۱۱ ۱۱ لیکن هرکله چه پطرس انطاکیې ته راغي نو مخامخ مې ورسره مقابله
۱۲ وکړه څکه چه ملامت شوي وُو ۱۲ ولي چه وړاندې له هغه نه چه څو
سړي دَ یعقوب له طرف نه راغله له غیر قومونو سره ئي خوراک کاوه
مګر هرکله چه دوي راغله نو دَ مختونو له ویرې ئي څان بیرته راکینس
۱۳ او بیل شه ۱۳ او نورو یهودیانو هم ریاکاري ورسره وکړه تر دې حده چه
۱۴ برناباس هم دَ هغو په ریاکاري ورسره وغولیدلی شه ۱۴ لیکن هرکله چه
ما ولید چه دوي دَ انجیل په رښتیني باندې سم برابر نه دروي نو دَ ټولو
دَ وړاندې مې پطرس ته وویل که ته چه یهودي یې دَ غیر قوم ګذران
کوې او نه دَ یهودیانو په شان نو ولې غیر قومونه زورې چه یهودي توب
۱۵ ۱۶ وکړي ۱۵ مونږ چه ذاتي یهودیان یُو او نه له غیر قومونو ګناهګاران ۱۶ په دې
پوه شولو چه سړي نه دَ شریعت په کارونو صادق ګڼلې شي بلکه په
وسیلې دَ ایمان په یسوع مسیح مونږ هم په یسوع مسیح ایمان راوړ تا
چه په ایمان دَ مسیح صادقان وګڼلې شُو او نه دَ شریعت په کارونو
سره څکه چه دَ شریعت په کارونو به هیڅ بشر صادقه وګڼلې نه شي -
۱۷ ۱۷ نو که چرې مونږ چه په مسیح دَ صادق کیدلو طلبګار یُو او بیا په خپله

خطاکار وموندلي شو نو ګنړه مسیح دَ خطا خادم دَي څه هسي دِ نه وِي
١٨ ١٨ ځکه هغه څیزونه چه ماخراب کړل که دغه بیا بنا کړم نو زه به خپل ځان
١٩ تعدیٰ کونکي ثابت کړم ١٩ ځکه چه زه دَ شریعت په وسیلي شریعت ته مړ
٢٠ شوم دي دَپارَ چه الله ته ژوندي شم ٢٠ زه له مسیح سره مصلوب
شوي یم مګر ژوندون کوم او نه زه بلکه مسیح په ما کښ ژوندون
کوِي او دا چه اوس په غوښي کښ ژوندون کوم نو په ایمان دَ الله په زوي
ژوندون کوم هغه چه له ما سره یٔ محبت وکړ او خپل ځان یٔ څما دَپارَ
٢١ وسپاره ٢١ زه فضل دَ الله نه عبث کوم ځکه چه که صداقت له شریعت
وِي نو مسیح وِړیا مړ شه ✤

# دریم باب

١ ١ اي ناپوهو ګلاتیانو چا په تاسو باندي جادو وکړ چه ستاسو دَ سترګو دَ وړاندِ
٢ یسوع مسیح مصلوب شوِي اشتهار شه ٢ تش دغه له تاسو زده کول غواړم
٣ چه تاسي روح دَ شریعت له عملونو وموند یا دَ ایمان له خبره ٣ تلسو هغسي
ناپوهان یئِ څه چه له روح نه مو شروع وکړه اوس په جسم کښ پوره کیږئِ
٤ ٥ ٤ تاسي دَ دومره څیزونو زغم عبث وکړ که چرِي عبث وِي ٥ نو هغه چه تاسي
ته روح عنایت کوِي او په تاسي کښ قوتونه کوِي نو دَ شریعت له عملونو
٦ یا دَ ایمان له اوریدلو نه کوِي څه ٦ لکه چه ابراهیم په الله ایمان راوړ او دا
٧ ده لره صداقت وګنړلي شه ٧ باری وپوهیږئِ هغه چه اهل دَ ایمان دِي
٨ هم هغه دَ ابراهیم زامن دِي ٨ او کتاب دا وړاندِ ولیدل چه الله به غیر
قومونه په ایمان سره صادق کړِي نو ابراهیم ته یٔ دا زیري وړاندِ ورکړ چه
٩ ټول قومونه به په تا کښ برکت مومِي ٩ نو هغه څوک چه ایماندار دِي له
١٠ ایماندار ابراهیم سره مبارک کیږِي ١٠ ځکه هر هغه څوک چه دَ شریعت
له عملونو دِي تر لعنت لاندي دِي لکه چه لیکلِي دِي چه هر هغه څوک
چه دَ هغو ټولو خبرو په کولو چه دَ شریعت په کتاب کښ لیکلِي دِي ټینګ
١١ نه اوسِي ملعون دَي ١١ مګر دا ظاهره ده چه هیڅوک دَ الله په نزد په شریعت

سره صادق کیدلې نه شي ځکه چه صادق په ایمان سره ژوندون کوي -
۱۲ ۱۲ لیکن شریعت له ایمانه نه دي بلکه هغه چه دا کارونه کوي په دغوکښې
۱۳ به ژوندون وکړي ۱۳ مسیح مونږ دَ شریعت له لعنت نه ویږودلو چه دي
خمونږ دَپارَ لعنتي شه ځکه چه لیکلي دي چه هغه څوک چه په لرګي اویزان
۱۴ کړي شي هم هغه ملعون شه ۱۴ تاچه دَ ابراهیم برکت وغیر قومونو ته په
یسوع مسیح کښې ورسیږي تاچه مونږ وعده دَ روح په ایمان سره مومو
۱۵ ۱۵ اي وروڼو زه دَ سړي په دود خبري کوم هیڅوک دَ سړي وعدهٔ چه
۱۶ مقرّرد شوي ده نه باطله کولي شي او نه په هغې څه زیاتولي شي ۱۶ بس
ابراهیم ته او دَده اولاد ته وعدي وویلي شوي نو هغه نه وایي چه ستاسي
ونسلونو ته لکه چه ډیرو لره بلکه لکه چه له یوه نه یعني ستا په نسل
۱۷ کښې نو هغه مسیح دَي - ۱۷ لیکن زه دا وایم چه هغه وعده چه الله لا پخوا
مقرّره کړي وه شریعت چه څلور سوه دیرش کاله ورستو راغي رده کوله ئي
۱۸ نه شي تاچه هغه وعده باطله کړي ۱۸ ځکه چه که میراث دَ شریعت په وسیلي
سره وي نو بیا به له وعدي نه وي مګر الله ابراهیم ته په وعدي سره عنایت
۱۹ کړي دي ۱۹ پس شریعت څه دَپارَ دي دغه دَ تعداؤ دَپارَ پري زیاته شوه تر
هغه پوري چه هغه نسل چه وعده ورکړي شوي وه را نه شي او هغه
۲۰ دَ فرښتو په وسیلي سره دَ میانځګري لاس ته وسپارلي شوه ۲۰ نو میانځګري
۲۱ له یوه نه دَي مګر الله یو دَي ۲۱ نو ګنړه شریعت دَ الله له وعدي نه مخالف
دَي هسي دِ نه وي ځکه چه که چري یوه (داسي) شرعه ورکړي شوي وي
چه ژوند ئي ورکولي شوي نو په یقین سره به صداقت په شرعي سره وه
۲۲ مګر کتاب ټول واړه تر خطا لاندي بند کړي دي تاچه وعده په ایمان راوړلو
دَ یسوع مسیح مؤمنانو ته ورکړي شي
۲۳ ۲۳ لیکن دَ ایمان له راتلو نه وړاندي مونږ تر شریعت دَ لاندي
بندیان ساتلي شوي وُو او تر هغه راتلونکي ایمان پوري چه ظاهر کیدونکي
۲۴ وه بندیان شوي وُو ۲۴ پس شریعت تر مسیح پوري خمونږ ملاوه تاچه

۲۵ په ایمان سره صادقان و شمیرلي شو ۲۵ مګر هرکله چه ایمان راغي نو
۲۶ مونږ تر ملا دَ لاندي نه یو ۲۶ ځکه چه تاسي ټول په سبب دَ ایمان
۲۷ راوړلو په یسوع مسیح باندي زامن دَ الله يئ ۲۷ چه له تاسو نه هرڅو چه
۲۸ له مسیح نه بپتسما بیاموندهِ نو مسیح ئې واغوست ۲۸ نه یهودي شته نه
یوناني نه مریي شته نه آزاد او نه نر شته او نه ښځه ځکه چه تاسي ټول
۲۹ په یسوع مسیح کښې یو يئ ۲۹ او که تاسي دَ مسیح يئ نو نسل دَ ابراهیم
او سوافق دَ وعدي وارثان يئ +

# څلورم باب

۱ ۱ نو زه دا وایم چه تر هغه وقتَ پوري چه وارث هلک دَي په دغه او په
۲ مریي کښې فرق نشته اګرکه هغه دَ هر څه مالک دَي ۲ بلکه تر هغه
وقتَ پوري چه پلار مقرر کړي دَي دَ ناظرانو او دَ وکیلانو په اختیار کښې
۳ دي ۳ نو مونږ هم چه هلکان وُو دَ عالم تر عنصرو لاندي مریونه شوي
۴ وُو ۴ مګر چه وقت په پوره کیدلو شه نو الله خپل زوي را واستاوه پیدا
۵ شوي له ښځي پیدا شوي تر شریعت دَ لاندي ۵ تا چه هغو لره چه تر شریعت
۶ لاندي دي په فدیي وپیري دي دَپارَ چه مونږ زوي والي بیامومو ۶ او دي
دَپارَ چه تاسي زامن يئ نو الله دَ خپل زوي روح ستاسي زړونو ته واستاوه
۷ چه ناري وهي اي ابا پلاره ۷ نو اوس ته مریي نه يي بلکه زوي او چه
زوی شوي نو په وسیلي دَ الله وارث هم يي
۸ ۸ لیکن هغه وقت چه الله مو نه پیژاند نو دَ هغو بندګي مو کوله
۹ چه په حقیقت کښې خدایان نه دي ۹ مګر اوس چه الله پیژنئ بلکه
له دي نه زیات له الله نه وپیژاندلي شوئ نو تاسي ولي دوباره دَ هغو
ضعیفو او خوارو عنصرو په لوري ګرزئ بیائي دوباره غلامي کول غواړئ
۱۰ ۱۱ ۱۰ تاسي ورځي او میاشتي او زماني او کالونه ساتئ ۱۱ زه ستاسي په باب
ویریږم هسي نه چه په تاسي مي عبث محنت کړي دي
۱۲ ۱۲ اي ورونړو زه تاسي ته زاري کوم چه تاسي څما په شان شئ

ځکه چه زه هم ستاسي په شان یم تاسي په ما هیڅ ظلم و نه کړ ۱۳ بلکه ۱۳
تاسي پوهیږئ چه ما وړنبي وار تاسي ته دَ جسم دَ کمزوري په سبب
زیري دَ انجیل درکړ او تاسو هغه ازمایښت چه ځما په جسم کښ وه
سپک او مکروه ونه گاڼه بلکه زه مو دَ الله دَ فرښتي په شان هو دَ مسیح
یسوع غوندِ قبول کړم ۱۵ نو هغه مبارکبادي ستاسي چرته ده ځکه چه زه ۱۵
په تاسي شاهِدي لم چه که امکان ئې لرلي نو خپلي سترګي به مو ایستلي
وي او ما ته به مو راکړي وي ۱۶ نو له دي سببَ چه رښتیا مو در ته ۱۶
ووېل زه مو دښمن شولم څه ۱۷ هغوي ستاسي مشتاق دِي نه په ښه ۱۷
شان سره بلکه غواړِي چه خارج موکړِي تاچه تاسي دَ دوی مشتاق شئِ ۱۸ ۱۸
نو مشتاقیدل خو په ښیگړه کښ مدام ښه دِي نه تش هغه وقت چه
زه درسره یم ۱۹ اي ځما فرزندانو ستاسي په سبب په ما باندي دَ لنگانه ۱۹
درد دَي تر هغه پوري چه مسیح په تاسي کښ صورت ونیسي ۲۰ کاشکي ۲۰
چه زه اوس له تاسي سره وي او خپل آواز مِ بدل کړي ځکه چه
زه ستاسي په حق کښ حیران یم

۲۱ ما ته ووایِئ تاسي چه تر توریت لاندي کیدل غواړِئ کتره دَ ۲۱
توریت نه اوریِئ څه ۲۲ لکه چه لیکلي شوِي دِي چه دَ ابراهیم دوه زامن ۲۲
وُو یو له وینځي او بل له آزادي ۲۳ لیکن هغه چه له وینځي وه دَجسم په طور ۲۳
پیدا شوي دَي او هغه چه له آزادي وه دَ وعدي په موافق وه ۲۴ دا خبري ۲۴
په اشارت سره دِي ځکه چه هغه دواړه دوه عهدونه دِي یو دَ سینا
له غره نه چه دَ غلامئ دَ پارَ زیږول کوي دغه حاجره ده ۲۵ ځکه چه حاجره ۲۵
په عربو کښ دَ سینا دَ غره مراد ده او اوسني اورشلیم ئې په قطار
کښ دَي ځکه چه له خپلو زامنو سره په غلامي کښ ده ۲۶ مګر پاس ۲۶
اورشلیم آزاد دي نو هغه ځمونږ مور ده ۲۷ ځکه چه لیکلي شوِي دِي چه ۲۷
اي شنډي چه نه زیږوي خوشحالي کوه
او ته چه دَ لنگانه درد نه پیژنې له خوښي ناري وهه او چیغي وکړه

ځکه چه دَ بيکسي ښځي اولاد له ميړوښي نه زيات دَي

۲۸ ۲۹ ۲۸ نو اي ورونړو مونږ دَ اسحاق په شان دَ وعدي فرزندان يُو ۲۹ ليکن لکه
چه هغه وقت چه دي دَ جسم په طور پيدا شه هغه چه دَ روح په موافق
۳۰ پيدا شه و ئي رټاوه هم هسي اوس هم کيږي ۳۰ مګر کتاب څه وايي چه وينځه
او ځوي ئي و شړه ځکه

چه دَ وينځي ځوي دَ آزادي دَ زوي سره به هيڅکله وارث نه شي

۳۱ ۳۱ غرض دا دَي اي ورونړو چه مونږ د وينځي فرزندان نه يُو بلکه دَ آزادي ئُو

## پنځم باب

۱ ۱ نو په هغي آزادي کښ چه مسيح پري آزاد کړُو ټينګ اوسيږ او بيا دَ
غلامي تر زُغ دَ لاندي مه شيږ
۲ ۲ ګورئ زه پولس تاسي ته وايم چه که چري تاسي مختون شئ نو له
۳ مسيحَ به ستاسي هيڅ فائده نه وِي ۳ زه بيا په هر سړي باندي چه ختنه
کړي شي ګواهي لم چه هغه پوروړي دَي چه په ټول شريعت عمل وکړي
۴ ۴ تاسي چه په شريعت سره صادق کيدل غواړئ نو له مسيح نه رد شوئ
۵ او له فضلَ پريوتلئ ۵ ځکه چه مونږ په ايمان سره دَ روح په واسطي دَ صداقت
۶ دَ اميد منتظر يُو ۶ دي دَپارَ چه په يسوع مسيح ختنه کيدل او نه
ختنه کيدل هيڅ نه په‌کاريږي مګر ايمان چه دَ محبّت په وسيلي سره اثر
۷ کوي ۷ تاسو په ښه طور دوګاود چا منعه کړئ چه دَ رښتيني تابعداري
۸ ۹ مه کوئ ۸ دغه تابعداري ستاسي له بلونکي نه نه ده ۹ لږ څه خميره ټوله
۱۰ پيړه خميره کوي ۱۰ خما ستاسو په باب په خداوند کښ يقين دَي چه
تاسي به په بل شان فکر و نه کړئ مګر هغه څوک چه تاسي پريشان
۱۱ کوي هرڅوک چه وِي خپله ګرمه به واخلي ۱۱ او زه اي ورونړو که هم تر
اوسه پوري دَ ختني وعظ کولي نو ولي به رټيدلم نو دَ صليب ټينډک خو
۱۲ باطل شوي دَي ۱۲ کاشکي هغه کسان چه تاسي اړوي خپل ځان ئي
هم پريکولي

١٣ ١٣ ځکه چه تاسي خو اي وروڼو دَ آزادئِ دَپاره بللي شوي يئِ مگر
آزادي نشه دَ جسم دَپاره وار مه گرځئِ بلکه په محبّت سره يو دَ بل خدمت
١٤ کوئِ ١٤ ځکه چه ټوله شرعه په يوي خبري کښ پوره شوي ده يعني چه
١٥ له خپل گاونډي سره دَ خپل ځان په شان مينه کوه ١٥ نو که تاسي يو
بل سره چيچئِ اوخورئِ نوخبردار هسي نه وي چه يو له بله هلاک شئِ
١٦ ١٦ نو زه دا وايم چه په روح سره گرځئِ نو دَ نفس شهوتونه به
١٧ پوره نه کړئِ ١٧ ځکه چه نفس دَ روح په خلاف خواهش کوي او روح په
خلاف دَ نفس او دوي يو له بل نه مقابله کوي تر دي چه هغه چه
١٨ تاسي ئي غواړئِ کولي ئي نه شئِ ١٨ ليکن که تاسي په روح سره بيولي
١٩ شوي يئِ نو تر شريعت دَ لاندي نه يئِ ١٩ او دَ نفس کارونه خو ظاهر دي
٢٠ يعني زنا ناپاکي فسق ٢٠ بت پرستي جادوگري دښمني جگړي غيرتونه قهرونه
٢١ گونډي داري فتني بدعتونه ٢١ حسد مستئِ رندانه مجلسونه او هغه
چه دَدغو په شان دي دَ هغو په باب وړاندِ درته وايم لکه چه وړاندِ
مِ درته ويلي دي چه هغه څوک چه دا هسي کارونه کوي دَ الله دَ بادشاهي
٢٢ وارثان به نه شي ٢٢ ليکن دَ روح ميوه چه ده محبّت خوښي صلحه
٢٣ اوږد زغم مهرباني ښيگړي ايمان حليمي پرهيزگاري ٢٣ دَ داسي کارونو
٢٤ په خلاف هيڅ شريعت نشته ٢٤ او هغه چه دَ يسوع مسيح دي نفس
ئي له بدو هوسونو او شهوتونو سره په صليب کړي دَي؛
٢٥ ٢٥ نو که په روح سره ژوندون وکړو نو دَ روح په ترتيب دِ هم وگرځو
٢٦ ٢٦ لاني وهونکي دِ نه شو چه يو په بل ولمسوو او يو په بل باندِ کينه وکړو÷

## شپږم باب

١ ١ اي وروڼو که هر څو يو سړي په يوه تقصير سره گرفتار شي نو تاسي
چه روحاني يئِ دغه شان سړي دَ حليمتوب په روح سره جوړ کړئِ او
٢ خپل ځان ته گوره هسي نه چه ته هم وازمايلي شي ٢ تاسي يو دَ بل
٣ پيټي واخلئِ او په دي طور سره دَ مسيح شرعه پوره کړئِ ٣ که چري

ځوک چه هیڅ څیز نه وِئ خپل ځان څه څیز وګنړِي نو هغه خپل ځان غولوِي
۴ ۴ مګر هر یو دِ خپل کار کوره کړِي او هاله به په خپل ځان فخر ولرِي
۵ او نه په بل چا ۵ ځکه چه هر ځوک به خپل خپل بار پورته کړِي
۶ ۶ هغه ځوک چه کلام زده کوِي نو زده کونکي دِ په ټولو ښو ښو څیزونو
۷ کښ شریک کړِي ۷ مه غولیږئِ په الله ټوقي نه کیږِي هر څه چه سړي
۸ وکړِي هغه به وریبي ۸ دي دَپارَ چه هر ځوک حه دَ خپل نفس دَپارَ وکړِي
نو له جسمه به خرابَي وریبي او هغه ځوک چه دَ روح دَپارَ وکړِي له
۹ روح نه به ابدِي ژوندون وریبي ۹ مونږ دِ په ښه کار کولو کښ ستړِي
۱۰ نه شُو ځکه چه که سُست نه شُو نو په خپل وقت به ئِي وریبُو ۱۰ پس
لکه چه څومره مونږ قابو لرُو له ټولو سره دِ نیکِي کوُو خاص له هغو
سره چه دَ ایمان له ټبره دِي
۱۱ ۱۲ ۱۱ ګورئِ ما په خپل لاس سره څومره لوي حرفونه درلیکلي دِي ۱۲ هغه
واړه چه دَ غوښي خوش رنګي غواړِي په زور سره په تاسي ختنه کوِي تش
۱۳ په دي چه دَ مسیح په صلیب وربړولِي نه شِي ۱۳ ځکه هغوي چه مختون دِي
په خپله شریعت نه ساتِي بلکه غواړِي چه تاسي ختنه شئِ تاچه دوي
۱۴ ستاسي په غوښه فخر وکړِي ۱۴ مګر را دِ و نه شِي چه زه فخر وکړم بي له
دي چه دَ خپل خداوند یسوع مسیح په صلیب باندي چه دَ هغه په
۱۵ سبب دنیا ماته مصلوبه شوه او زه دنیا لره ۱۵ ځکه چه په مسیح یسوع کښ
۱۶ نه مختونِي څه شي دَي نه نامختونِي بلکه نوي پیدائښت ۱۶ او هغه ټول
چه په دي قانون په ترتیب سره درومي صلحه او رحم په هغو باندي او په
اسرائیل دَ الله باندي
۱۷ ۱۷ پس له دي دِ ما ته هیڅوک دبړونه نه راکوِي ځکه چه زه په خپلي
جُسي باندي دَ خداوند یسوع مسیح داغونه ورم
۱۸ ۱۸ اي ورونړو ځمونږ دَ خداوند یسوع مسیح فضل دِ ستاسو
له روح سره وِي-آمین *

# خط دَ پولس رسول وافسيانوته

## اوّل باب

١ پولس رسول دَ يسوع مسيح په ارادي دَ الله هغو پاکانو ته چه په ١
افسس کښ دِي او په مسيح يسوع کښ مؤمنان دِي ٢ فضل او سلامتي ٢
له الله پلار خمونږ نه او له خداوند يسوع مسيح نه دِ په تاسو وِي
٣ مبارک دي هغه الله او خمونږ دَ خداوند يسوع مسيح پلار چه ٣
مونږ ئي په ټولو روحاني برکتونو سره په آسماني ځايونو کښ په مسيح
کښ مبارک کړلو ٤ لکه چه ده له بنا دَ عالم نه وړاندي په ده کښ غوره ٤
کړو تا چه مونږ دَ ده په حضور په محبت کښ پاک او بي‌عيب شو ٥ چه ٥
ده په خپلي نيکي ارادي سره مونږ وړاندي مقرّر کړلو چه دَ يسوع مسيح
په وسيلي دَ ده زاهوزاد شو ٦ تا چه دَ ده دَ فضل دَ جلال حمد وشي ٦
چه له دغه فضل ئي مونږ ته په هغه محبوب کښ انعام راکړ ٧ چه ٧
مونږ په ده کښ دَ ده دَ وينو په وسيلي فديه ولرو يعني دَ تقصيرونو
معافي دَ ده دَ فضل دَ دولت په موافق ٨ چه هغه ئي مونږ ته په ټول ٨
حکمت او په زيرکي کښ ډير زيات را وبخښل ٩ چه ده دَ خپلي مرضي ٩
راز دَ خپلي نيکي ارادي په موافق په مونږ باندي ظاهر کړ چه وړاندي
ئي په ده کښ مقرّر کړ ١٠ دَ پاره دَ انتظام دَ پوره کولو دَ وقتونو تا چه ټول ١٠
څيزونه هغه چه په آسمانونو کښ دِي يا په زمکه باندي دِي په مسيح
کښ په يو سر کښ ټول کړِي ١١ هغه چه په ده کښ مونږ هم وارثان شولو چه وړاندي ١١
مقرّر شولو دَ ده دَ ارادي په موافق چه ټول کارونه دَ خپلي مرضئ دَ
صلاح په موافق کوِي ١٢ تا چه مونږ چه وړاندي په مسيح کښ اميدوار ١٢
شولو دَ ده دَ جلال حمد شو ١٣ چه تاسي هم په هغه کښ يئ چه دَ ده حق ١٣
کلام مو واوريده يعني انجيل دَ نجات خپل او په هغه چه تاسي ايمان

١٤ پرِي راوړِ دَ روح القدس دَ وعدي مُهر مو هم بياموند ١٤ هغه چه خمونږ
دَ ميراث بيعانه دَي دَپارَ دَ پېرودلو دَ هغه خاص مُلک تا چه دَده دَ
جلال حمد وشي
١٥ ١٥ له دي سببه ما هم چه ستاسي دَ ايمان خبر چه په خداوند
يسوع مسيح دَي او دَ هغه محبّت چه له ټولو پاکانو سره ئې لري واوريد
١٦ ١٦ نو زه ستاسي له شکرگذاريو او ستاسي له يادونو په خپلو دعاؤ
١٧ کښې نه ودرېږم ١٧ تا چه الله خمونږ دَ خداوند يسوع مسيح پلار دَ
جلال تاسو ته په خپل معرفت کښې روح دَ حکمت او دَ کشف درکړي
١٨ ١٨ چه ستاسي دَ زړونو سترګي روښانه کړي تاسي پوه شئ چه اميد
دَده دَ بللو څه دَي او دَده دَ ميراث دَ جلال دولت په پاکانو کښې څه
١٩ دَي ١٩ او دَده قدرت په مونږ مؤمنانو کښې څومره بېحده لوي دَي په موافق
٢٠ دَ عمل دَ زور دَ قوّت دده ٢٠ هغه چه په مسيح کښې ئې عمل کاوه چه
هغه ئې له مړو پورته کړ او چه په آسماني ځايونو کښې ئې په خپل
٢١ ښي لاس کښېناوه ٢١ زيات پاس په ټولي حاکمي او مختاري او قدرت او
خاوندي او په هر يوه نامه باندي چه نه تش په دي جهان کښې بلکه
٢٢ چه په راتلونکي جهان هم نومړي کېږي ٢٢ او هر څه ئې دَده تر پښو
لاندي تابعدار کړل او ذي ئې دَ کليسيي دَپارَ پاس په ټولو سر کړ
٢٣ ٢٣ چه دا ئې جُسه ده هغه ډکوالي چه واړه په واړو کښې ډکوي ؞

## دويم باب

٢/١ ١ او تاسي چه په تقصيرونو او په خپلو خطاؤ کښې مړه وئ ٢ هرکله
چه په هغه کښې تاسو وړاندي په موافق دَ زماني دَ دي عالم په موافق
دَ سردار دَ حکومت دَ هوا ګرزېدلي يعني هغه روح چه اوس دَ نافرماني
٣ په زامنو کښې تاثير کوي ٣ چه دَ هغو په مېنځ کښې مونږ هم ټولو واړو
دَ خپلي جُسي په شهوتونو کښې ژوندون تېراوه او خواهش دَ جُسّي او
دَ فکرونو به مو پوره کاوه او په طبيعت سره دَ نورو په شان فرزندان

دَ غضب وُو ۴ مگر الله چه په رحم کښ غني دَي دَ خپل لوي محبّت ۴
په سبب چه په هغه سره ئي په مونږ مينه وکړه ٥ نو مونږ هم چه ٥
په تقصيرونو کښ مړه وُو له مسيح سره ئي ژوندي کړلو (تاسي خو په
فضل سره خلاص شوي يئ) ٦ او له ده سره ئي پورته کړلو او په مسيح ٦
يسوع کښ په آسماني ځايونو کښ کښېنولو ٧ تا چه له هغي بېحدي مهرباني ٧
خپلي چه په مسيح يسوع کښ په مونږ باندي دَه په آينده زمانو کښ دَ
خپل فضل بي‌اندازه دولت ښکاره کړي ٨ ځکه چه تاسي په فضل سره ٨
دَ ايمان په وسيلي خلاص شوئ او دا له تاسي نه نه دي بلکه دَ الله
بخش دي ٩ نه په عملونو سره دي هسي نه وِي چه څوک به فخر وکړي ٩
١٠ ځکه چه مونږ دَده کاريگري يُو چه په مسيح يسوع کښ دَ ښو کارونو ١٠
دَپارَ پيدا شولو چه الله وړاندي تيار کړي وُو تا چه په هغو کښ وگرزُو
١١ دي دَپارَ ياد کړئ چه تاسي وړاندي په جسم کښ غير قومونه وئ ١١
او نامختون بللي شوئ له هغو نه چه خپل ځان مختون بولي هغه چه
په جسم کښ په لاسونو سره وشوه ١٢ چه هغه وقت تاسي بي مسيحَ وئ ١٢
او دَ اسرائيل له وطنوالي نه بيگانه وئ او دَ وعدي له عهدونو
مسافران وئ او نا اميدَ او په دنيا کښ بي خدايه وئ ١٣ ليکن اوس ١٣
په مسيح يسوع کښ تاسي چه پخوا لري وئ دَ مسيح په وينو نژدي کړي
شوي يئ ١۴ ځکه چه هم هغه ځمونږ سلامتي ده چه دواړه ئي يو کړل ١۴
او هغه ديوال چه په مينځ کښ وه و ئي نړاوه ١٥ يعني هغه دښمني دَ ١٥
شريعت دَحکمونو چه په رسمونو کښ وَه په خپلي جسم کښ ئي باطله کړه
تا چه دواړه په خپل ځان کښ يو نوي سړي پيدا کړي او صلحه وکړي ١٦ او ١٦
دواړه په يو صورت کښ له الله سره پخلا کړي په وسيلي دَ صليب چه
په هغي سره ئي دښمني ووژله ١٧ او دي راغي تاسو ته چه لري وئ او ١٧
هغو ته چه نژدي وه دَ صلحي زيري ئي وکړ ١٨ ځکه چه دَ دَه په وسيلي مونږ ١٨
دواړه په يو روح کښ پلار ځنځه دخل لرو ١٩ نو اوس تاسي مسافران او ١٩

٢٠ بيگانه نه يئِ بلكه هَمْ‌وطنِي دَ پاكانو او خيلخانه دَ الله يئِ ٢٠ او دَ رسولانو
او دَ انبياؤ په بنياد باندي چه يسوع مسيح په خپله دَ كُټ سر دي
٢١ بنا كړِي شوِي يئِ ٢١ چه په دي كښي ټول عمارت جُخت سره جوړ شوي پاک
٢٢ هيكل په خداوند لوئيږِي ٢٢ او په ده كښي تاسي هم سره بنا كړي شوِي
يئِ تا چه په روح كښي مسكن دَ الله شئِ ٭

## دريم باب

١ ١ له دي سببَ زه پولس قيدِي دَ يسوع مسيح ستاسو دَپارَ اي غير قومونو
٢ ٢ كه چري تاسي دَ الله دَ هغه فضل دَ مختارئ په باب چه ما ته
٣ ستاسي دَپارَ راكړي شوي دَه اوريدلِي وِي ٣ چه په كشف سره هغه
٤ راز ما ته ظاهر شه لكه چه هغه مِ وړاندي لږ څه وليكه ٤ چه هركله
٥ چه لولِئ ئې نو پوهه شئ به دَ مسيح په راز وپيژاندلي شئِ ٥ چه هغه په
وړاندنيو پيړيو كښي بني‌آدم ته په دي شان سره ظاهر نه شه لكه چه
اوس دَ ده په پاكو رسولانو او په نبيانو په روح كښي كشف شوي دَي -
٦ ٦ چه غير قومونو په مسيح كښي په وسيلي دَ انجيل په ميراث كښي او په
٧ صورت كښي او په شراكت دَ جلدِي كښي سره گډ دِي ٧ چه زه ئې خدمتكار شوم دَ هغه
نعمت په موافق دَ. فضل دَ الله چه دَده دَ قدرت له تاثير نه ما ته
٨ راكړي شه ٨ ما ته چه له ټولو مقدسانو نه زيات وړكوټي يم دا فضل
٩ راكړي شه چه غير قومونو ته دَ مسيح دَ بي‌اندازي دولت زيري وركړم ٩ او
ټولو ته دا ښكاره كړم چه څه انتظام دَي دَ هغه راز چه له ازل نه په
١٠ هغه الله كښي پټ وه چه ټول ئې پيدا كړل ١٠ تا چه اوس دَ كليسيا
په وسيلي و حاكمانو او اختيار والو ته چه په آسماني ځايونو كښي دِي دَ
١١ الله رنگارنگ حكمت ظاهر شِي ١١ دَ ازلِي قصد په موافق چه په يسوع
١٢ مسيح خداوند خموږ كښي ئې وكړ ١٢ چه په هغه كښي موږ دَ هغه دَ ايمان
١٣ په وسيلي دَ ويلو زړورتوب او دخل له باور سره لرو ١٣ نو زه تاسي
نه سوال كوم چه تاسي خما دَ دړونو په سبب چه ستاسي په خاطر دِي

مه سُست کيږئ څکه چه هغه ستاسي دَپارَ جلال دَي
۱۴ ۱۴ دي دَپارَ څمونږ دَ هغه پلار دَ وړاندي خپل زنګنونه لګوم -
۱۵ ۱۵ چه له ده نه ټولي ټبري په آسمانونو کښ او په زمکه باندي نوم بياموي
۱۶ ۱۶ چه دي دَ خپل جلال دَ دولت په موافق تاسي نه دا درکړي چه دَ ده دَ روح
۱۷ په وسيلي په باطِني انسان کښ په قوت سره زوراور کړي شئ ۱۷ چه مسيح
۱۸ دَ ايمان په وسيلي ستاسي په زړونو کښ واوسي ۱۸ تا چه تاسي په محبت
کښ بيخ لرونکي او بُنياد ږدونکي شئ له ټولو پاکانو سره په نيولو قادر
۱۹ شئ چه ارتوالي او اوږدوالي او ژوروالي او اوچتوالي څومره دَي ۱۹ او چه
دَ مسيح په محبّت چه له معرفت نه بالاتر دَي پوه شئ تا چه دَ الله له
۲۰ ټول ډکوالي نه ډک شئ ۲۰ اوس هغه ته چه داسي قادر دي چه هرڅه
چه مونږ يي غواړو يا ئي خيال کوو په موافق دَ هغه قدرت چه په مونږ
۲۱ کښ اثر کوي له هغه نه لا زيات کولي شي ۲۱ هغه لره دِ دَ کليسيا په مينځ
په مسيح يسوع کښ پيړئ په پيړئ ابدالاباد جلال وِي آمين +

# څلورم باب

۱ ۱ نو زه چه په خداوند کښ بندِي يم تاسو ته التماس کوم چه له هغي
۲ بلني سره موافق چه بللي شوي يئ کوزئ ۲ له ډيري عاجزي او حليمي سره
۳ له اوږده زغم سره په محبت سره يو دَ بل برداشت کوئ ۳ او کوشش
۴ کوئ چه يګانګي دَ روح په تړوني دَ صلحي کښ وساتئ ۴ يو صورت
او يو روح دي لکه چه تاسي هم بللي شوي يئ دَ خپلي بلني په يوه
۵ ۶ اميد کښ ۵ يو خداوند يو ايمان يوه بپتسما ۶ يو الله او دَ ټولو پلار چه
۷ په ټولو پاس او دَ ټولو په مينځ او په ټولو کښ دَي ۷ ليکن له مونږ نه
هر يوه ته دَ مسيح دَ نعمت دَ اندازي په موافق فضل ورکړي شوي دَي -
۸ ۸ دي دَپارَ هغه وايي چه

په اعلیٰ دخوت بندِي يي بند کړ
او سړيو ته يي بخښونه ورکړل

۹ ۹ مگر دَده اعلیٰ ختل نور څه دِي مگر دا چه ورښي و لاندي ځايونو دَ
۱۰ زمکي ته هم کوز شه ۱۰ هغه کس چه کوز شه هغه دي چه په ټولو
۱۱ آسمانونو باندي پاس وختي تا چه ټول ډک کړي ۱۱ او ده ځني رسولان
او ځني نبيان او ځني زيري ورکوونکي او ځني شپانه او استادان مقرر
۱۲ کړل ۱۲ دَپارَ دَ کاملولو دَ پاکانو دَ خدمت کار ته او دَ مسيح دَ جُسي دَ
۱۳ بِناکولو دَپارَ ۱۳ تر هغه پوري چه مونږ ټول واړه دَ ايمان و يکانګي ته
او دَ الله دَ ابن و معرفت ته تر کامل انسانَ يعني دَ مسيح دَ پوره قد
۱۴ تر اندازي پوري و رسيږو ۱۴ تا چه مونږ بيا هلکان نه شُو چه دَ تعليم
له هره باده ځايي خوړلي او آواره شوِي دَ سړو په حيلو په ټګي او چل
۱۵ دَگمراهي ته ورو ستلي شوِي وِي ۱۵ بلکه رښتيا ويونکي په محبت کښ په
۱۶ ټولو څيزونو کښ لوي شو هغه لره چه سر دَي يعني مسيح ۱۶ چه له ده
نه ټول صورت سره پيوند شه او سره مضبوط کړي شه په وسيلي دَ مدد
دَ هر پيوند موافق دَ تاثير په اندازي دَ هري يوي حصي دَ صورت لوئيدل
حاصلوِي دَپارَ دَ بِنا کيدلو دَ خپل ځان په محبّت کښ
۱۷ ۱۷ نو زه دا وايم او په خداوند شاهدِي لم چه تاسي بيا داسي و نه
ګرزئِ لکه چه نور غير قومونه دَ خپل باطل ذهن په موافق ګرزِي -
۱۸ ۱۸ ځکه چه دَ هغو عقل تاريک شوي دَي او دوي دَ هغي ناداني په سبب
چه په کښ دِي او دَ خپل زړه دَ سختي په سبب دَ الله له ژوندونه
۱۹ بيګانه شول ۱۹ چه دوي بي سده شوِي خپل ځانونه ئي فاسقي ته وسپارل
۲۰ دي دَپارَ چه په حرص کښ هرګنده کار وکړي ۲۰ مگر تاسي له مسيح نه
۲۱ دا رنګ زده نه کړل ۲۱ که چري تاسي دَده اوريدلي وِي او په ده کښ
۲۲ سو تعليم بياموندلي وَي لکه چه په يسوع کښ رښتيا ده ۲۲ چه تاسي
دَ وړاندِني خوي په باب هغه زوړ انسانيت چه دَ ټګونکو شهوتونو
۲۳ په سبب وروست دي وباسئِ ۲۳ او په روح دَ ذهن خپل کښ بيا نوِي
۲۴ شئِ ۲۴ او هغه نوي سړي چه دَ الله په شان په صداقت او په حقيقي

قداست کښې پيدا شه واغونديِ
۲۵ ۲۵ له دي سببَ دروغ لرې کړئِ هر يو سړي دِ له خپل گاونډي سره
۲۶ رښتيا وايي ځکه چه مونږ خو يو دَ بل اندامونه يو ۲۶ غصّه کوئِ او خطا
۲۷ مه کوئِ ستاسي په غصّي کښې دِ نمر ډوب نه شي ۲۷ او ابليس ته
۲۸ ځاي مه ورکوئِ ۲۸ غل دِ بيا غلا نه کوي بلکه زيات محنت دِ کوي په خپلو
۲۹ لاسونو دِ ښه محنت کوي تاچه محتاج ته څه ورکولي شي ۲۹ هيڅ خرابه
خبره دِ ستاسي له خولي و نه ووزي بلکه هغه چه دَ حاجت په موافق
۳۰ دَ ښاکولو دَپارَ ښه وي تاچه اوريدونکو لره فضل ورکړي ۳۰ او
روح القدس دَ الله چه په دغه سره تاسي دَ فديي تر ورځي پوري مهر
۳۱ کړي شوي يئِ مه غمجن کوئِ ۳۱ ټول ترېخوالي او غضب او غصّه اوغوغا
۳۲ او کفر له ټول شرارت سره دِ ستاسي له مينځ نه لري شي ۳۲ اوتاسي
يو په بل مهربان او مشفق شئِ او يو بل ته بخښنه کوئِ لکه چه الله
هم په مسيح کښې تاسي ته بخش وکړ *

## پنځم باب

۱ ۲ ۱ پس تاسي دَ محبوبو ځامنو په دود دَ الله مقتديان شئِ ۲ او په محبت
کښې گرځئِ لکه چه مسيح هم له تاسي سره محبت وکړ او ځمونږ دَپارَ
۳ ني خپل ځان و الله ته دَ خوشبويئِ دَپارَ نذر او قرباني کړ ۳ مگر دَ زنا
اودَ هري پليتئِ يا دَ طمعي دِ ستاسي په مينځ ذکر هم و نه شي لکه
۴ چه پاکانو ته مناسب دي ۴ او نه بي شرمي او پوچ گويي يا ټوقي چه لايقي
نه دي بلکهِ شکرگذاري غوره ده ځکه چه تاسي په دي ښه خبر يئِ او
پوهيږئِ چه هيڅ زناکار يا پليت يا حرصناک سړي چه بت پرست دي دَ مسيح
۶ او دَ الله په بادشاهي کښې ميراث نه لري ۶ هيڅوک دِ تاسي په باطلو
خبرو و نه غولوي ځکه چه دَداسي خبرو په سبب غضب دَ الله دَ نافرماني
۷ ۸ په زامنو باندي راځي ۷ نو تاسي دَ هغو شريکان مه شئِ ۸ ځکه چه تاسي
وړاندي تياره وئِ مگر اوس په خداوند کښې نور يئِ نو دَ نور دَ زامنو

٩ په شان وګرزئ ٩ ځکه چه ميوهٔ دَ نور په کاملي ښيګړي او په صداقت او په رښتيني کښ دَه
١٠ ١١ ١٠ تاسي تحقيق وکړئ چه دَ خداوند څه خوښ دي ١١ او دَ تياري په بيحاصلو کارونو کښ مه
١٢ ١٣ شريکيږئ بلکه زيات ئي ګرم هم کړئ ١٢ ځکه چه دَ هغو دَ پټو کارونو ذکر کول هم شرم دي ١٣ مګر
دا ټول څيزونه چه ملامت ورباندي کيږي په نور سره ظاهريږي ځکه هر څه چه ظاهريږي نور دي
١٤ ١٤ دي دَپارَ وائي چه پاسه ته چه اوده يي او له مړيو پورته شه او مسيح به په تا باندي وځلکيږي
١٥ ١٥ له دي سبب ګورئ چه څرنګ به په احتياط سره ګرزئ نه لکه نادانان بلکه لکه دانايان
١٦ ١٧ ١٦ او وقت غنيمت وګڼئ ځکه چه ورځي بدي دي ١٧ دي دَپارَ ناپوهه مه شئ بلکه پوه شئ چه
١٨ دَ خداوند اراده څه دَه ١٨ او په شرابو مست مه شئ چه په دغو کښ فاسقي ده بلکه له روح نه
١٩ ډک شئ ١٩ او يو له بل سره په مزمورونو او په حمدونو او په روحاني سندرو سره خبري کوئ او
٢٠ خداوند ته په خپل زړه کښ سرود او نغمي کوئ ٢٠ او په ټولو خبرو کښ څمونږ دَ خداوند يسوع
٢١ مسيح په نوم سره دَ الله او دَ پلار مدام شکر کوئ ٢١ او دَ مسيح له ويري يو دَ بل فرمانبردار اوسئ
٢٢ ٢٣ ٢٢ اي ښځو دَ خپلو ميړونو داسي فرمانبرداري اوسئ لکه چه خداوند ته ٢٣ ځکه چه ميړه
٢٤ دَ ښځي سر دَي لکه مسيح هم دَ کليسا سر او دَ صورت خلاصونکي دَي ٢٤ نو لکه چه کليسيا
٢٥ دَ مسيح فرمانبرداره ده هم هسي دِ ښځي په هري خبري کښ شي ٢٥ اي ميړونو په خپلو ښځو مينه
٢٦ کوئ لکه چه مسيح هم په کليسيا مينه وکړه او خپل ځان ئي دَ دي په بدلي ورباندې ٢٦ تا چه هغه
٢٧ دَاوبو په غسل سره په کلام پاک او مقدس کړي ٢٧ تا چه دي په خپله دَ خپل ځان دَپارَ داسي
جلال واله کليسيا تياره کړي چه په کښ داغ يا ګونځه يا کوم بل داسي شئ نه وي بلکه دا چه مقدسه
٢٨ او بيعيبه وي ٢٨ هم هسي په ميړونو لازم دي چه په خپلو ښځو داسي مينه کړي لکه په خپلو
٢٩ جُسو هغه چه په خپلي ښځي مينه کوي په خپل ځان مينه کوي ٢٩ ځکه چه هيڅا هيڅکله له خپلي
٣٠ جُسي سره کينه کړي نه ده بلکه پالنه او ساتنه ئي کوي لکه چه مسيح هم هغه کليسيا ٣٠ ځکه چه مونږ دده
٣١ دَ جُسي اندامونه يو ٣١ له دي سبب به سړي خپل پلار او مور پريږدي او له خپلي ښځي سره به پيوند شي
٣٢ ٣٣ او دوي دواړه به يوه جُسه شي ٣٢ دا لوي راز دَي ليکن زه دَ مسيح او دَ کليسيا په باب خبري کوم ٣٣ مګر له تاسي
نه دِ هر يو بيل بيل له خپلي ښځي سره داسي مينه کوي لکه چه له خپل ځان سره او ښځه دِ دَ خپل ميړه ويره کوي

# شپږم باب

١ ١ اي فرزندانو په خداوند کښ دَ خپل پلار او مور تابعداري کوئ ځکه چه دا صداقت دَي ٢ دَ خپل پلار او مور

عزّت کوئِ دا وړمبي حکم دَي چه وعده ورسره ده ۳ تا چه تا لره ښه وِي او ستا عمر په زمکه باندِ ۳
دراز شي ۴ او اي پلرونو خپل فرزندان مه قهروئِ بلکه دوي دَ خداوند په تربيت او په نصيحت وپالئِ ۴
۵ اي غلامانو دَ هغو چه دَ جسمي په نسبت ستاسي خاوندان دِي دَ خپلو زړونو په صفائِي ۵
سره په ويره او په لړزي ئي داسي فرمانبرداري کوئِ لکه مسيح لره ۶ نه په خدمت دَ سترګو لکه ۶
خوشحالونکي دَ سړيو بلکه لکه غلامان دَ مسيح چه اراده دَ الله په زړه سره (پوره) کوِي ۷ او په نيک نيتي ۷
سره خدمت کوئِ لکه خداوند لره نه سړو لره ۸ ځکه چه تاسي پوهيږئِ چه هر يو چه دَ نيکي کار کوِي که ۸
غلام وِي که آزاد هم هغسي به له خداوند نه بيامومِي ۹ او اي خاوندانو تاسو هم له دوي سره په دغه شان ۹
کار کوئِ درکي پرېږدئِ ځکه چه تاسي پوهيږئِ چه دَ دوي او ستاسي خداوند په
آسمانونو کښ دَي او دَ هغه څخه په ظاهر نظر نشته
۱۰ غرض دا دَي چه په خداوند کښ او دَ هغه دَ قوّت په زور کښ قوتناک شئِ ۱۱ ټوله وسله دَ الله وَ نړئِ ۱۰ ۱۱
دي دَپارَ چه دَ ابليس دَ حيلو په مقابلي کښ ودريدلي شئِ ۱۲ ځکه چه ځمونږ کُشتي له وينو او له غوښي ۱۲
سره نه دَه بلکه له حاکمانو او له اختياروالو او دَ دي دنيا دَ تاريکي له زوراورو سره او دَ شرارت له روحونو سره چه
په آسماني ځايونو کښ دِي ۱۳ دي دَپارَ ټوله وسله دَ الله واخلئِ دي دَپارَ چه تاسي په بدي ورځي کښ دَ مقابلي ۱۳
کولو توان ولرئِ او ټول کارونه په ځاي راورئِ او ودريږئِ ۱۴ دي دَپارَ ودريږئِ خپله ملا په رښتيني سره وتړئِ او دَ ۱۴
راستبازي زغره واغوندئِ ۱۵ او دَ صلحي دَ انجيل په تياري سره خپلئِ په پښو کاږئِ ۱۶ او په دغو ټولو باندي ۱۵ ۱۶
دال دَ ايمان ونيسئِ چه په هغه سره ټول سونکي غشي دَ هغه شرير مړه کړي شئِ ۱۷ او خول دَ نجات او توره ۱۷
دَ روح چه خبره دَ الله ده واخلئِ ۱۸ او په ټولو دعاؤ او په زاري سره هر وقت په روح کښ دُعا غوارئِ او ۱۸
په دي کښ دَ ټولو پاکانو دَپارَ تل ترتله په زاري سره ويښ اوسئِ ۱۹ او ځما دَپارَ هم تا چه ما ته کلام راکړي شي ۱۹
چه خپله خوله پرانزم دَ ويلو په زړورتوب سره راز دَ انجيل ظاهر کړم ۲۰ چه دَ دغه دَپارَ په زنځيرونو ۲۰
کښ ايلچي يم تا چه زه په زړورتوب سره هغه داسي ووايم لکه چه ما ته ئي ويل بايده دِي
۲۱ او دا چه تاسي هم ځما په حال پوه شئِ چه زه څه کوم نو تخيکس چه محبوب ورور او دَ ۲۱
خداوند امانتدار خادم دَي تاسي به په هر څه خبر کړِي ۲۲ چه دي مِ تاسي ته دي دَپارَ در ۲۲
واستاوه چه تاسي ځمونږ په حال پوه شئِ او دي به ستاسي زړونو ته تسلّي درکړِي
۲۳ ورونړو ته دِ سلامتي وِي او له الله پلار نه او له خداوند يسوع مسيح دِ له ايمان سره محبت ۲۳
وِي ۲۴ فضل دِ له هغو ټولو سره وِي چه ځمونږ له خداوند يسوع مسيح سره په بقا کښ محبت کوِي ـ آمين * ۲۴

# خط دَ پولس رسول وفِلپیانو ته

## اوّل باب

۱ ۱ پولس او طمطاؤس دَ مسیح یسوع غلامان وهغو ټولو پاکانو ته
چه په مسیح یسوع په فلپیي کښ له أسقوفانو او له خادمانو سره
۲ دي ۲ فضل دِ تاسو ته او سلامتي دِ ځمونږ له الله پلار نه او له
خداوند یسوع مسیحَ وِي
۳ ۴ ۳ زه ستاسو په هري یادګاريِ کښ دَ خپل الله شکر کوم ۴ او
په هري دُعا خپلي کښ په خوښيِ سره مدام ستاسو دَ ټولو دَپارَ دُعا
۵ کوم ۵ په سبب دَ شراکت ستاسي په هغه انجیل کښ چه له اوّلي
۶ ورځي تر اوسَ پوري دَي ۶ او ځما دا یقین هم دَي چه په تاسي کښ
يئ نیک کار شروع کړ دَ یسوع مسیح تر ورځي پوري به يئ پوره کړي
۷ ۷ لکه چه په ما حق دَي چه زه دا ستاسو دَ ټولو په جهت فکر وکړم
دي دَپارَ چه زه تاسي په خپل زړه کښ لرم په دي چه ځما په زنځیرونو
او دَ انجیل په حجّت او په اثبات کښ تاسي ټول ځمادَغه فضل شریکان
۸ يئِ ۸ ځکه چه الله ځما شاهد دَي چه زه دَ یسوع په کُلمو کښ
۹ ستاسي دَ ټولو مشتاق یم ۹ او زه دا دُعا غواړم چه ستاسي مینه
۱۰ لا ډیره زیاته شيِ په فهم او په ټول معرفت کښ ۱۰ تا چه تاسي
دَ غورو ځیزونو تمیز وکړيِ او چه تاسي دَ مسیح تر ورځي پوري پاکیزه
۱۱ او بي بُدريِ شئِ ۱۱ دَ صداقت له میوي نه چه دَ یسوع مسیح په وسیلي
سره ده دَ الله دَ جلال او دَ ثنا دَپارَ ډک شئِ
۱۲ ۱۲ او اي ورونړو زه غواړم چه تاسي پوه شئِ چه هغه څه چه
۱۳ په ما وشول زیات.خو دَ انجیل دَ ترقي دَپارَ وشول ۱۳ تر دي حده
چه ځما زنځیرونه په ټول دربار دَ قیصر.کښ او په نورو ټولو کښ په

۱۴ مسیح کښې ظاهر شول ۱۴ او اکثر له وروڼو ځما په زنځیرونو په خداوند
۱۵ کښې ډاډه شوي ډیر زړور شول چه بې ویرې کلام وایي ۱۵ ځنې خو دَ
کیني او دَ جګړې په سبب مګر ځنې په نیک نیت سره دَ مسیح منادي کوي
۱۶ ۱۶ مګر ځني له مینې نه پوهیږي چه زه دَ انجیل دَ حجّت دَپارَ یښي شوي یم
۱۷ ۱۷ او ځني په جګړې سره نه په اخلاص دَ مسیح منادي کوي او ګمان
۱۸ کوي چه دوي ځما په زنځیرونو رنځ پورته کوي ۱۸ نو څه دي سره له دي
په هر شان سره که په مکر که په رښتيا سره وي دَ مسیح منادي کیږي
۱۹ او په دي خوش یم بلکه خوښي به هم وکړم ۱۹ ځکه چه زه پوهیږم چه
دا به ځما دَپارَ نجات وګرزي ستاسي دُعا او دَ یسوع مسیح دَ روح په
۲۰ مدد سره ۲۰ لکه چه ځما انتظار او امید دي چه زه به په هیڅ خبري
کښې شرمنده نه شم بلکه په ټول زړورتوب سره لکه همیشه هم هسي
به اوس مسیح ځما په جُسې کښې یاخو په ژوند یاخو په مرګ بزرګي ومومي
۲۱، ۲۲ ۲۱ ځکه چه ځما دَپارَ ژوندون مسیح دَي او مرګ ګټه دَه ۲۲ لیکن که
ژوندون په جسم کښې هم دغه کار میوه ده نو نه پوهیږم چه څه اختیار
۲۳ کړم ۲۳ او زه له دي دوارو نه مجبور یم دا خواهش لرم چه کوچ وکړم او له
۲۴ مسیح سره شم ځکه چه دا ډیره بهتره ده ۲۴ مګر په جسم کښې پاتي کیدل
۲۵ ستاسي دَپارَ ډیر ضرور دي ۲۵ او زه په دي په یقین سره پوهیږم چه زه
به تم شم او له تاسي ټولو سره به پاتي شم دَپارَ دَ ترقۍ او دَ خوښۍ دَ
۲۶ ایمان ستاسي ۲۶ چه ستاسي فخر چه په یسوع مسیح کښې دي په ما کښې
زیات شي په وسیلې دَ دوباره حاضریدلو ځما تاسو ته خاص لایق دَ
انجیل دَ مسیح زیست کوئ دي دَپارَ چه که زه درشم او تاسي ووینم یا
پسې شا یم او ستاسي په باب خبري واورم چه تاسي هم په یوه روح
کښې ودریږئ او په یو ځان سره دَ انجیل دَ ایمان دَپارَ پهلواني کوئ۔
۲۸ ۲۸ او په هیڅ خبري کښې له مخالفانو ترس نه کوئ چه دا هغوی لره دَ هلاکت
۲۹ ظاهریدلو دَپارَ او تاسو لره نجات دَي او دا له الله دي ۲۹ ځکه چه دَ

مسیح په خاطر تاسي ته دروبخښلي شول نه تش دا چه تاسي په ده
۳۰ ایمان راوړئ بلکه چه د ده په خاطر د هم دردیږئ ۳۰ ځکه چه په تاسي
کښې هم هغه سعیه ده چه په ما کښې ئې وینئ او اوس اورئ چه په ما کښې ده

## دویم باب

۱ ۱ نوکه په مسیح کښې څه تسلي وي که څه د محبت نصیحت وي که د
۲ روح څه شراکت که څه کلمي سوي او مهرباني وي ۲ نو خوښي څما پوره
کړئ تا چه تاسي هم هغه فکر کوئ او هم هغه محبت ولرئ سره یو ځان
۳ او هم فکر شئ ۳ په جګړي او په باطل فخر سره د هیڅ څیز نه وي بلکه په
۴ عاجزئ سره یو بل له خپلو ځانونو بهتر ګڼرئ ۴ تاسي هر یو په خپلو
۵ حالونو نه بلکه هر یو د نورو په حالونو نظر کوئ ۵ نو په تاسي کښې
۶ د داسي فکر وي لکه چه په یسوع مسیح کښې ۶ چه دي د الله په صورت
۷ وه او له الله سره ئي برابریدل غنیمت و نه ګاڼه ۷ بلکه خپل ځان ئي
خالي کړ تا چه د غلام صورت ئي واخست او د انسان په مشابه شه
۸ ۸ او چه په شکل کښې لکه انسان داسي ومونده شه نو خپل ځان
ئي عاجز کړ او تر مرګ پوري بلکه تر صلیبي مرګ پوري تابعدار شه
۹ ۹ ځکه الله دي هم ډیر سرفراز کړ او ده ته ئي هغه نوم چه له
۱۰ ټولو نومونو پاس دي وبخښه ۱۰ تا چه د یسوع په نوم کښې هر زنګون
له اهل د آسمانونو او له اهل د زمکي او د هغو چه تر زمکي د لاندي
۱۱ دي تیټ شي ۱۱ او هره ژبه به اقرار وکړي چه یسوع مسیح هغه
خداوند دي د الله پلار د تمجید دپاره
۱۲ ۱۲ نو اي څما وروڼو لکه چه تل تاسي تابعداروئ هم هسي
نه څما په حاضرئ کښې بلکه اوس څما په غیر حاضرئ کښې ډیر زیات په
۱۳ ویري او په لړزي سره خپل نجات په عمل راوړئ ۱۳ ځکه چه هغه الله
دي چه په تاسي کښې کارکونکي دي چه د خپلي مرضي په موافق اراده
۱۴ ۱۵ او عمل کوي ۱۴ ټول کارونه بي ګنګسو او بي مباحثو کوئ ۱۵ تا چه تاسي

بي ملامتيا او بي مكره شئ او بي عيبَ فرزندان دَ الله شئ دَ كږي او
۱۶ دَ كجروي پيرئ په مينځ كښې ۱۶ چه تاسي په هغو كښې دَ نورونو په
شان په دنيا كښې ځلقيږئ او دَ ژوندانه كلام ونيسئ تاچه دَ مسيح
په ورځ ځما فخروي نه دَ باطل دَپارَ وزغليدم نه مِ دَ باطل دَپارَ
۱۷ محنت وكړ ۱۷ ليكن كه ځما وينې هم ستاسي دَ ايمان په قرباني او په
خدمت باندي توي ښي نو زه هم خوشحال يم او له تاسي ټولو سره
۱۸ په خوشحالي وكړم ۱۸ او په دي سبب تاسي هم خوشحال شئ او له ما سره
خوشحالي وكړئ

۱۹ ۱۹ او ځما په خداوند يسوع كښې دا اميد دَي چه طِمطاؤس تاسو
ته زر در واستوم دي دَپارَ چه ستاسي احوال معلوم كړي او ځما ځان
۲۰ هم خوښ ښي ۲۰ ځكه هيڅوک داسي هَم ځانه راسره نشته چه په اخلاص
۲۱ سره ستاسي په حالونو انديښنه وكړي ۲۱ ځكه چه ټول دَ خپلو
۲۲ ځانونو ځيزونه لټوي نه دَ هغو چه دَ يسوع مسيح دي ۲۲ مګر تاسي
دَده له لياقتَ خبر يئ لكه چه زوي له پلار سره هم هسي ده
۲۳ له ما سره دَ انجيل غلامي وكړه ۲۳ نو زه اميدوار يم چه ځرنګ دَ
۲۴ خپل انجام احوال وينم هاله به دَي درواستوم ۲۴ او دا مِ په خداوند
۲۵ يقين دَي چه زه به په خپله هم زر درشم ۲۵ ليكن اوس مِ ضرور وګڼڼله
چه اِپفروديطس چه ځما ورور او هَم كار او هَم سپاه او ستاسي رسول
۲۶ او ځما دَ حاجت خدمتكار دَي تاسو ته ئي دراستوم ۲۶ ځكه چه هغه
ستاسي دَ ټولو مشتاق او غمزده وه دي دَپارَ چه تاسو واوريدل
۲۷ چه دي رنځور دي ۲۷ او په مرګ حال رنځور خو وه مګر الله رحم پرِ
وكړ نه تش په ده بلكه په ما باندي ئي هم هسي نه چه زه غم په غم
۲۸ واخلم ۲۸ نو هغه مِ ډير زر درواستاوه چه تاسي دَده په ليدلو بيا
۲۹ خوشحال شئ او ځما غم هم كم ښي ۲۹ نو هغه په خداوند كښې په كامله
۳۰ خوښي قبول كړئ او دا رنګ كسان عزتمند وګڼئ ۳۰ ځكه چه دَي دَ

مسيح دَ کار دَپارَ په مرګ حال وه څکه چه ده خپل ځان په خطري کښ
واچاوه تاچه ستاسي هغه کموالي دَ خدمت ځما دَپارَ پوره کړي *

# دريم باب

۱ آ غرض دا دَي اي ځما ورونړو په خداوند کښ خوشحال شئ چه تاسي
ته دَ هغو خبرو ليکل په ما باندي درانه نه دِي او ستاسو دپارَ امن
۲ دي ۲ له سپو احتياط کوئ له بدکارانو احتياط کوئ له غوڅونکو احتياط
۳ کوئ ۳ څکه چه مختونان مونږ يُو چه په روح سره دَ الله عبادت کوُو
۴ او په مسيح يسوع کښ فخر کوُو او نه په جسم ډاډه يُو ۴ اګرکه زه
هم دَ جسم دَ ډاډه کيدلو وس لرلي شم که څوک نور څوک په جسم
۵ کښ دَ ډاډه کيدلو ګمان لري نو زه لا زيات ۵ (چه زه) په اتمه ورځ
ختنه کړي شوي له نسل دَ اسرائيل له قبيلي دا ابن يمين له عبرانيانو
۶ يوعبراني او په نسبت دَ شريعت فريسي ۶ دَ غيرت په باب دَ کليسيا
ربړونکي او دَ هغه صداقت په باب چه په شريعت کښ دَي بي ملامتيا
۷ ۷ ليکن هر څيز چه ځما دَپارَ نفعه وه هغه مِ دَ مسيح دَپارَ نقصان
۸ وګڼړه ۸ بلکه بيشکَ دَ خپل خداوند يسوع مسيح دَ معرفت دَ فضيلت
دَپارَ هر څه نقصان ګڼړم چه دَ ده په خاطر مِ ټول څيزونه نقصان کړه
۹ ګنډکي مِ وګڼړل تا چه مسيح وګټم ۹ او په ده کښ بياموندلي شم
نه په خپل صداقت لرلو (سره) چه له شرعي دَي بلکه هغه چه دَ مسيح
دَ ايمان (راوړلو) په وسيلي دي يعني هغه صداقت چه له الله دَي په
۱۰ ايمان سره ۱۰ چه دَي وپيژنم او قدرت دَ قيامت دده او شراکت دَ
دردونو دَده او مشابه کيدل دَده له مرګ سره ۱۱ چه ګندي قيامت
۱۲ دَ مړيو ته ورسيم ۱۲ دا نه ده چه ما تراوسَ واخست يا تراوسَ کامل
شوم مګر ورپسي زغلم تا چه ګندي هغه ونيسم چه دَ هغه دَپارَ يسوع
۱۳ مسيح زه نيولي وم ۱۳ اي ورونړو زه خپل ځان دا نه ګڼړم چه نيولي مِ
۱۴ دَي ۱۴ مګر دا يوه (خبره) چه هغه څيزونه چه وروستو دِي هيروم ئي

اوښغه چه په وړاندِ دِي خپل ځان اوږدوم دَ نښان په لوري زَغلم دَپارَ دَ انعام
۱۵ دَ ځونډي دَ پاس بلني دَ الله چه په يسوع مسيح کښِ ده ۱۵ نو هر څو
چه په مونږ کښِ کامل دِي دا فکر دِ کوِي او که په کومي خبري کښِ
ستاسو بل شان انديښنه وِي نو الله به هغه هم تاسي ته کشف کړِي
۱۶ ۱۶ مگر تر هر ځايَ پوري چه مونږ رسيدلي يُو نو هغه ته دِ ورشُو
۱۷ ۱۷ اي ورونړو تاسي ټول له ما سره مقتديان شئِ او په هغو باندِ چه څمونږ
۱۸ دَ نموني په موافق گرزِي نظر وکړئِ ۱۸ ځکه چه ډير گرزِي چه دَ هغو ذکر مِ وتاسو
ته ډيرځله وکړ او اوس هم په ژړا سره درته ذکر کوم چه هغوي دَ مسيح دَ صليب
۱۹ دښمنان دِي ۱۹ چه آخر دَ هغو هلاکت دي دَ دوي الله دَ دوي گيډه ده او
دَ دوي عزّت دَ دوي په شرم کښِ دَي چه دوي دَ زمکي په څيزونو فکر کوِي
۲۰ ۲۰ ځکه چه وطن څمونږ په آسمانونو کښِ دَي چه له هغه ځاي نه دَ بچات
۲۱ ورکونکي خداوند يسوع مسيح انتظار کوُو ۲۱ چه څمونږ خاورينه جُسه به بدله
کړِي تاچه دَده دَجلالي جُسي په شان هم شکل شي دَ خپل عمل په موافق
چه ټول څيزونه دَ خپل ځان تابعدار کولي شِي ؞

## څلورم باب

۱ ۱ دي دَپارَ اي څما محبوبانو او عزيزانو ورونړو څما خوښئِ او څما تاجَ په
دي شان سره اي محبوبانو په خداوند کښِ ولاړ اوسئِ
۲ ۲ ايوديه ته زاري کوم او سِنتُوخي ته هم زارِي کوم چه په خداوند کښِ دِ
۳ يو فکرَ شي ۳ هو تا نه هم سوال کوم اي مخلصَ هم ژغه چه تا دَ هغو ښځو چه دوي
له ما سره دَ انجيل په خدمت کښِ کوشش وکړ له کليمنس او څما له نورو همکارو سره
چه دَ دوي نومونه دَ ژوندانه په کتاب کښِ دِي مددگارِي وکړه
۴ ۵ ۴ په خداوند کښِ مدام خوشحالي کوئِ بيا وايم خوشحالي کوئِ ۵ ستاسي حليمي
۶ دِ ټولو سړو ته معلومه شي خداوند نژدي دي ۶ دَ هيڅ خبري انديښنه
مه کوئ بلکه په هري خبري کښِ دِ ستاسي سوالونه په دُعا او په زارِيِ
۷ کښِ له شکرگذارِيِ سره دَ الله دَ وړاندي ظاهر کړي شيِ ۷ او صلحه دَ

الله چه له ټولَ عقلَ پاس دَيَ ستاسي دَ زړونو او دَ فکرونو نګهباني به په مسیح کښ وکړي
٨ ٨ غرض دا دَي اي ورونړو هر هغه څه چه رښتني دِي هر هغه څه چه
معتبر دي هر هغه څه چه راست دِي هر هغه څه چه پاک هر هغه څه چه خوشنما
دي هر هغه څه چه نیکنام دي اګرکه څه نیکي او څه تعریف وِي په دي خبرو غور
٩ وکړئ ٩ او هغه څیزونه چه تاسي زده کړل او قبول کړل او واوریدل او په ما کښ
مو ولیدل هم دغه کوئ او دَ صلحي الله به له تاسو سره وِي
١٠ ١٠ او زه په خداوند کښ ډیر خوشحال شوم دي دپارَه چه اوس په دي آخر کښ
ستاسي فکر څما په باب بیا تازه شه چه په هغه کښ تاسي هم فکر کاوه لیکن وار
١١ مو مایانه موند ١١ دا خو زه دَ احتیاج په سبب نه وایم ځکه چه ما خو دا زده کړل
١٢ چه په هغه حال کښ چه زه یم پرې راضي کیږم ١٢ زه په عاجز کیدلو هم پوهیږم او
په زیاتیدلو هم پوهیږم په هرې خبري او په ټولو خبرو دَ ډکیدلو او دَ وږي کیدلو په
١٣ زیاتیدلو او په کمیدلو کښ آموخته شوي یم ١٣ په هغه کښ چه ما ته قوت بخښي
١٤ په ټولو خبرو قادر یم ١٤ نو هم تاسي ښه وکړل چه څما په تنګسیا کښ راسره
١٥ شریکان شوئ ١٥ لیکن اي فلیپیانو تاسو هم پوهیږئ چه دَ انجیل په شروع کښ چه
زه له مقدونیي نه دَ باندي راغلم نو هیڅ یوه کلیسیا تش بې له تاسو په ورکولو
١٦ راکولو کښ راسره شراکت ونه کړ ١٦ چه په تسلونیقي کښ هم څما دَ حاجت دپارَ هم یو
١٧ وار هم دوه واره څه را واستول ١٧ دا نه دَه چه زه انعام لټوم بلکه هغه میوه لټوم چه
١٨ ستاسي دَ حساب ډیرونکي شي ١٨ لیکن زه هر څه لرم او زیاتیږم ډک شوي یم هر کله چه
ما له ایفرودیطس نه ستاسي څیزونه وموندل بوي دَ خوشبوئي منظوره قرباني پسندیده
١٩ دَ الله ١٩ او څما الله به ستاسي ټول حاجتونه په مسیح یسوع کښ دَ خپل تمجید دَ دولت
٢٠ په موافق پوره کړي ٢٠ څمونږ پلار الله ته دِ ترابدالآباده پوري تمجید وِي - آمین
٢١ ٢١ هر پاک ته په یسوع مسیح کښ سلام وایئ هغه ورونړه چه
٢٢ له ما سره دِي په تاسي باندي سلام وايي ٢٢ ټول پاکان خاص هغوي چه دَ
قیصر دَ کور دِي په تاسو باندي سلام وايي
٢٣ ٢٣ څمونږ دَ خداوند یسوع مسیح فضل دِ ستاسي له روح سره وِي - آمین ❊

# خط دَ پولس رسول کولسیانو ته

## اول باب

۱ پولس رسول دَ یسوع مسیح په ارادي دَ الله او طمطاؤس ورور ۲ هغو ۱ ۲
پاکانو ته او په مسیح کښې مؤمنانو ورورو ته چه په کولسي کښې دِي فضل
تاسو ته او سلامتي له الله پلار خمونږ.
۳ مونږ دَ الله پلار دَ خپل خداوند یسوع مسیح شکر کوو مدام ۳
ستاسي دَپارَ دُعا کوو ۴ چه مونږ ستاسي دَ ایمان راوړل په یسوع مسیح ۴
کښې واوریدل او هغه محبّت چه تاسي يې له ټولو پاکانو سره لرئِ
۵ دَ هغه امید دَپارَ چه تاسي ته په آسمانونو کښې ایښي شوي دَي چه ۵
دَ هغه ذکر تاسي وړاندي دَ انجیل په حق کلام کښې واوریده ۶ چه هغه ۶
تاسي ته حاضر دي لکه چه په ټولي دنیا کښې هم شته میوه راوړونکي
او لوئیدونکي لکه چه په تاسي کښې له هغي ورځي نه چه تاسي دَ الله
فضل په حقیقت سره واوریده او و مو پیژاند ۷ لکه چه تاسي خمونږ له ۷
عزیز هم خدمتَ اِپفراس نه هم زده کړ چه ستاسي په خاطر دَ مسیح
امانت‌دار خادم دي ۸ چه ده ستاسي دَ روح دَ محبّت خبر مونږ ته راکړ ۸
۹ دي دَپارَ مونږ هم له هغي ورځي چه دا مو واوریدل ستاسو دَپارَ ۹
مو دُعا و غوښتنه او له سوال کولو نه نه ودرېږو چه تاسي په ټول حکمت
او په روحاني پوهه دَ ده دَ ارادي په پیژاندلو سره ډک شئِ ۱۰ چه تاسي ۱۰
په ټولي خوشحالئِ سره لایق شان دَ خداوند وګرزئِ او په هر نیک کار
کښې میوه راوړونکي او په معرفت دَ الله کښې لویدونکي شئِ ۱۱ په هر ۱۱
قوت سره دَ ده دَ جلال دَ زور په موافق قوتناک شئِ ټول صبر او اوږده
زغم لره په خوشحالي سره ۱۲ شکرګذار هغه پلار لره چه يې په‌نور کښې ۱۲
دَ پاکانو دَ میراث بخري لره لایق کړي یو ۱۳ او مونږ يې دَ تاریکي له ۱۳

اختياره خلاص کړلو او دَ خپل دَ محبت ځوي بادشاهي ته ئې وروستلو
۱۴ ۱۵ ۱۴ چه موږ په هغه کښې فديه لرو (يعني) دَ خطاؤ دَ معافي ۱۵ هغه
۱۶ چه دَ ناديدني الله صورت دَي او دَ ټول پيدايښت مشر دَي ۱۶ ځکه چه
له ده نه ټول پيدا شوي دي هغه چه په آسمانونو کښې دي او په زمکه
باندي دي ديدني يا ناديدني که تختونه وي که خداوندي که حاکمي که اختيار
۱۷ وي ټول څيزونه دَده په وسيلي او ده لره پيدا شوي دي ۱۷ او هغه له
۱۸ ټولو اوّل دَي او ټول څيزونه په ده کښې سره ودريږي ۱۸ او دي دَ جسمي
(يعني) دَ کليسيا سر دَي هغه چه ابتدا دَي مشر له مړيو تا چه په ټولو
۱۹ کښې ورنبني شي ۱۹ ځکه چه دَده خوښه شوه چه په ده کښې ټول دکوالي
۲۰ واوسي ۲۰ او دَده په وسيلي ټول څيزونه له خپل ځان سره پخلا کړي چه
دَده دَ صليب دَ وينو په وسيلي صلحه وکړي (هو) دَ هغه په وسيلي
يا هغه څيزونه چه په زمکه دي يا هغه څيزونه چه په آسمانونو کښې دي
۲۱ ۲۱ او تاسو هم چه وړاندي بيګانه او په عقل کښې دښمنان وئ دَ
شرارت په کارونو کښې اوس ئې پخلا کړي يئ دَده دَ غوښي په جسمي
۲۲ کښې دَ مرګ په وسيلي ۲۲ تا چه تاسي پاک او بې‌عيب او ناګرمه په
۲۳ خپل حضور کښې حاضر کړي ۲۳ که چري تاسي په ايمان کښې بنا کړي
شوي او په ايمان کښې مضبوط اوسئ او دَ هغه انجيل له
اميد نه چه تاسي واوريده ښنګزن نه شئ چه دَ دعه وعظ په ټول
پيدائښت کښې چه تر آسمان دَ لاندي دَي کړي شوي دَي چه زه پولس
دَ هغه خادم يم
۲۴ ۲۴ او زه اوس په خپلو دردونو کښې ستاسي دَ خاطر دَپارَ خوشحالي
کوم او هر څه چه دَ مسيح له تنګيو دَده دَ جسمي يعني دَ کليسيا باقي
۲۵ دي په خپل جسم کښې ئې پوره کوم ۲۵ دَ هغي (کليسيا) چه زه ئې
خادم يم په موافق دَ هغي ناظرئ دَ الله چه ستاسي په حق کښې
۲۶ ما ته راکړي شوه دي دَپارَ چه کلام الله پوره کړم ۲۶ يعني هغه راز چه

له زمانو او له پیړیو نه پټ کړی شوي وه مګر اوس ذده پاکانو ته ښکاره
٢٧ شوي دَي ٢٧ چه دوي لره الله دا اراده وکړه چه خبر يُ کړي چه دولت
دَ جلال ددي راز په غیر قومونو کښ څه ذي هغه چه مسیح په تاسي
٢٨ کښ اسید دَ جلال دي ٢٨ هغه چه موږ وعظ ږي کوُو هر سړي ته
نصیحت کوُو او هر سړي ته په کاملي دانایي سره زده کوُو تا چه هر سړي
٢٩ په یسوع مسیح کښ کامل حاضر کړُو ٢٩ او زه دي دَپارَ محنت او سعیه کوم
ذده دَ تاثیر په موافق چه په قدرت سره په ما کښ تاثیر کوي *

# دویم باب

١ ١ زه غواړم چه تاسي پوه شيِ چه ستاسي او دَ هغو چه په لاودیکیي کښ
دِي او دَ هغو ټولو دَپارَ چه څما مخ ني په جسم کښ لیدلي نه دي زه څه
٢ قدر سعیه لرم ٢ تا چه دَ هغو زړونه تسلي موِي او په محبت سره ټول
دولت دَ یقین او دَ فهم او دَ معرفت دَ راز دَ الله او دَ مسیح پیوسته
٣ ٤ شيِ ٣ چه په هغي کښ ټولي خزاني دَ دانايِ او دَ پوهي پټي دِي ٤ لیکن
دا وایم هسي نه وِي چه څوک تاسِ ته په پستو خوږو خبرو فریب درکړي
٥ ٥ ځکه چه اګر که زه په جسم کښ بسي شا یم لیکن په روح کښ
درسره یم او زه ستاسي ترتیب او په مسیح باندي ستاسي دَ ایمان
مضبوطي ویم او خوشحالیږم
٦ ٦ نو لکه چه تاسي مسیح یسوع خداوند قبول کړ (هم هسي) په ده
٧ کښ ګرزيِ ٧ او په ده کښ بیخ نیونکي او بنا ږدونکي او په ایمان کښ مضبوط
شيِ لکه چه تاسي تعلیم بیاموند او له شکرګذاريِ سره په ده کښ زیاتیدونکي
شيِ
٨ ٨ ګوريِ هسي نه وِي چه څوک مو په فیلسوفيِ او په باطل فریب سره
دَ سړو دَ روایت او دَ عالم دَ عنصرو په موافق وشوکوِي او نه دَ مسیح
٩ په موافق ٩ ځکه چه ټول ډکوالي دَ الوُهیت په ده کښ دَجسي په طور اوسي
١٠ ١٠ او تاسي په ده کښ چه دَ ټولي حاکمي او اختیار سر دَی ډک کړي شوِي

۱۱ يئِ ۱۱ او په ده کښې تاسي په داسي ختني سره ختنه شوئِ چه په لاس سره
کړي شوي نه ده يعني دَ مسيح په ختني سره چه دَ غونبئِ دَ جُسي يستنه
۱۲ کوي ۱۲ او له ده سره په ښپتسما کښې ښخ شوي يئِ او په ده کښې ور سره
پورته کړي شوي هم يئِ په وسيلي دَ ايمان دَ تاثير د هغه الله چه دي
۱۳ ئې له مړيو پورته کړ ۱۳ تاسي چه په خپلو تقصيرونو کښې او دَ خپل جسم
په نامختونئِ کښې مړه وئِ له ده سره ئې ژوندي کړئِ چه ده ټول تقصيرونه
۱۴ ستاسي دربخښلي دي ۱۴ او دَ حکمونو دستخط چه زمونږ په خلاف وه محوه
ئې کړ او له مينځ نه ئې يوړ چه په صليب باندي ئې په ميخونو ولګاوه
۱۵ ۱۵ او حکومتونه او اختيارونه ئې له ځانَ يستل ننداره دَ دوي ئې څرګنده
کړه او په هغوي په ده کښې بري (بياموند)
۱۶ ۱۶ نو هيڅوک دِ په خوراک يا په څښاک يا دَ عيد يا دَ نوي مياشتي يا
۱۷ دَ سبّت په باب په تاسي حکم و نه کړي ۱۷ ځکه چه دا دَ راتلونکو څيزونو
۱۸ سيوري دَي مګر جُسه دَ مسيح (ده) ۱۸ هيڅوک دِ په ارادي سره په عاجزئ
او دَ فرښتو په عبادت سره له تاسي نه ستاسي دَ بري خوندي و نه
تښتوي هغوي چه په هغو څيزونو کښې چه ليدلي نه دِي دخل کوي ځکه
۱۹ چه په خپل جسماني عقل عبث پړسيږي ۱۹ او هغه سر نه نيسي چه له دغه
نه ټوله جُسه په وسيلي دَ پيوندونو او دَ بندونو غذا مومي او سره
مضبوط کړي شوي په لوي والي دَ الله لوئيږي
۲۰ ۲۰ نو که تاسي له مسيح سره دَ دنيا له عنصرو مړه شوئِ نو تاسي
۲۱ ولي په دنيا کښې ګويا ژوندي شوي دستورپرست شوئِ ۲۱ داسي چه مسّه
۲۲ مه کوه او څکه مه کوه او لاس مه وړه ۲۲ چه دا ټول څيزونه په استعمال
کښې فاني کيږي دَ سړو دَ داسي فرضونو او حکمونو او دَ تعليمونو په موافق
۲۳ ۲۳ چه دا څيزونه ناموس دَ دانائي لري په نفلي عبادت او په
عاجزئ او په آزار دَ جُسي کښې مګر هيڅ فائده نه لري په خلاف
دَ پړکوالي دَ نفس ÷

# دریم باب

١ نو که تاسي له مسیح سره ژوندِي پورته شوئِ وِ پاسنِي څیزونه ولټوئِ ١
چه هلته کښ مسیح دَ الله په ښي لاس ناست دَي ٢ دَ پاسنیو څیزونو ٢
فکر کوئِ نه دَ هغو څیزونو چه په زمکي دِي ٣ ځکه چه تاسي مړه شوئِ ٣
او ژوندون ستاسي له مسیح سره په الله کښ پټ دَي ۴ نو هرکاه چه ۴
مسیح چه څمونږ ژوندون دي ښکاره شِي نو به له ده سره تاسو هم په
جلال کښ ښکاره شئِ

٥ دي دَپارَ خپل هغه اندامونه چه په زمکه دِي مړه کړئِ یعني زنا ٥
ناپاکِي شهوت بدخواهش او طمعَ چه بت‌پرستِي دَه ٦ ځکه چه دَدي کارونو ٦
په سبب غضب دَ الله په ځامنو دَ نافرمانئِ راځي ٧ چه په هغه کښ ٧
تاسي هم وړاندي ګرزیدئِ چه په هغه کښ مو ژوندون کاوه ٨ مګر اوس ٨
تاسي دغه ټول وباسئِ (یعني) غضب او قهر شر کفر اوګنده خبره له خپلي
خولي نه ٩ یو بل ته دروغ مه وائِ ځکه چه تاسي زوړ سړي له خپلو ٩
کارونو یستلَي دَي ١٠ او نوي مو واغوست چه معرفت لره دَ خپل خالق دَ ١٠
صورت په موافق تازه کیږي ١١ چه هلته کښ نه یهودِي نه یونانِي او نه ١١
ختنه او نه نامختونِي او نه بربرِي او نه چغتِي او نه مریونه او نه آزاد شته
بلکه ټول او په ټولو کښ مسیح دَي

١٢ له دي سببَ اي پاکانو او محبّانو دَ الله دَ غوره کړیو په شان ١٢
زړه سوي او مهربانِي او عجِزِي او حلیمِي او اوږد صبر واغوندئِ ١٣ او که ١٣
کوم یو له بله څه ګله لرِي نو یو دَ بل زغم دِ کوِي او یو بل ته دِ بخښنه
کوِي لکه چه مسیح تاسي ته بخښنه کړي دَه تاسو هم داسي کوئِ ١۴ او په ١۴
دغو ټولو باندي محبّت (واغوندئِ) چه دغه تړونِي دَ کاملیت دَي ١٥ او ستاسي ١٥
په زړونو کښ دِ صلحه دَ الله بَرِي وکړئِ ځکه چه په دغي سره په یوي
جُثي کښ بللِي شوي وئِ او شکرګذار شئِ ١٦ دَ مسیح کلام دِ په پریوانئِ ١٦
سره په ټولي دانائِي کښ په تاسي کښ واوسئِ یو بل ته تعلیم او نصیحت کوئِ

په مزمورونو او په حمدونو او په روحاني غزلونو کښې په فضل سره په خپلو
۱۷ زړونو کښې الله ته سرود وکړئ ۱۷ او هر څه چه کوئ په قول يا په فعل
سره ټول په نامه د خداوند يسوع کوئ او ده په وسيلې الله پلار له
شاکر اوسئ
۱۸ ۱۸ اي ښځو لکه چه په خداوند کښې لايق دي د خپلو مړونو فرمانبرداري
۱۹ ښئ ۱۹ اي مړونو د خپلو ښځو سره مينه کوئ او ورباندې تلخي مه کوئ
۲۰ ۲۰ او اي زامنو په هر کار کښې د پلار او مور تابعداري کوئ ځکه چه
۲۱ د الله هم دغه پسنده ده ۲۱ اي پلرونو خپل زامن مه لمسوئ هسي
۲۲ نه وي چه بې زړه شي ۲۲ اي مريونو په هر کار کښې د هغو چه د جسمي
په موافق مو خاوندان دي تابعداري کوئ نه په خدمت د سترګو لکه چه
څوک سړي راضي کوي بلکه د زړه په صفائي سره لکه د خداوند ويريدونکي
۲۳ ۲۳ او هر څه چه کوئ په زړه سره ئې کوئ لکه خداوند له نه سړو
۲۴ له ۲۴ ځکه چه تاسي پوهيږئ چه له خداونده نه جزا د ميراث مومئ
۲۵ ځکه چه تاسي د خداوند مسيح غلامي کوئ ۲۵ مګر هغه چه ظلم کوي
د خپل ظلم په موافق به مومي او طرفداري نشته +

# څلورم باب

۱ ۱ اي خاوندانو تاسي خپلو مريونو ته عدل او برابري ورانديکړئ په
دي پوه شئ چه ستاسي هم په آسمان کښې يو خداوند شته
۲ ۲ په دعا کښې لګيا اوسئ او په دغه کښې له شکرګذاري سره ويښ
۳ اوسئ ۳ او څمونږ دپاره هم دعا کوئ چه خداوند مونږ ته د کلام دروازه
پرانزي چه زه د مسيح راز چه د هغه دپاره تړلي شوي هم يم ووايم
۴ ۴ تا چه زه هغه داسي ښکاره کړم لکه ما له ويل بايده دي —
۵ ۵ له هغو خلقو سره چه باهر دي په دانائي سره ګرزئ وقت غنيمت
۶ وګڼرئ ۶ ستاسو کلام دې مدام له فضل سره په مالګه مزه دار وي دي دپاره
چه پوه شئ چه هر يوه ته څرنګ ځواب ورکول بائده دي

۷ ۷ ټول احوال څما به تاسي ته تخیکس چه څما محبوب ورور او امانتدار
۸ خادم او په خداوند کښ راسره غلام دَي در معلوم کړي ۸ او دغه مِ
هم دي دپارَ تاسو ته درواستاوه چه ستاسي حالونه معلوم کړي او
۹ ستاسي زړونو ته تسلّي درکړي ۹ او له دغه سره مِ امانتدار او محبوب
ورور او نیسِمَس چه یو له تاسي دَي دوي به تاسي دَ دي ځاي له ټوله
احواله خبر کړي

۱۰ ۱۰ ارسطرخس همَقید څما او مرقس دَ برنباس خوریي چه دَده په
۱۱ حق کښ مو حکمونه موندلي دِي که تاسو ته درشي قبول يي کړیِ ۱۱ او
یسوع چه جستس بللي شي چه دغه ټول له مختونانو دِي تاسو ته
سلام وايِي خاص هم دغه دَ الله دَ بادشاهي دَپارَ څما همَکاران دِي
۱۲ چه څما دَپارَ تسلّي شول ۱۲ ایپفْراس چه له تاسو نه دَ مسیح یسوع
سریي دَي په تاسو سلام وايِي او تل تل ستاسي دَپارَ په دعاؤ سعیه
کوِي دي دَپارَ چه تاسي په ټولي ارادي دَ الله کښ کامل او یقیني
۱۳ شيِ ۱۳ ځکه چه زه دَده شاهد یم چه دي ستاسو دَپارَ او دَ هغو
دَپارَ چه په لاودیکیه دِي او چه په هراپولس کښ دِي ډیر محنت کونکي دَي
۱۴ ۱۵ ۱۴ لوقا محبوب طبیب او دیماس په تاسو سلام وايِي ۱۵ تاسي هغو
ورونړو ته چه په لاودیکیه کښ دِي او نیمفَس ته او هغي کلیسیي ته
۱۶ چه دَده کوه دي سلام ووايِئ ۱۶ او چه دا خط تاسي ته و لولي شي
نو داسي وکړيِ چه دَ لاودیکیي په کلیسیا کښ هم ولوستلي شي او چه
۱۷ تاسي هم دَ لاودیکیانو خط ولوليِ ۱۷ او اَرخِپَس ته ووايِئ چه ته
په هغه خدمت کښ چه له خداوند نه دِ موندلي دَي نظر کوه
چه پوره يي کړي

۱۸ ۱۸ څما پولس له خپل لاس نه سلام څما زنځیرونه په یاد کړيِ
له تاسي سره دِ فضل وِي ـ آمین *

# اوّل خط دَ پولس رسول وِتسالونيکيانوته

## اول باب

١ آ پولس او سلوانوس او تمطاؤس دَ تسالونيکيانو وکليسيي ته په
الله پلار او په خداوند يسوع مسيح کښ دِ فضل او سلامتي وِي
٢ ٢ مونږ ستاسو دَ ټولو دَپارَ مدام دَ الله شکر کوُو او په خپلو
٣ دعاؤ کښ مو ذکر کوُو ٣ او دَ خپل الله پلار په حضور ستاسي دَ
ايمان کار او دَ محبّت محنت او دَ اميد صبر چه څمونږ په خداوند
۴ يسوع مسيح دَي بي ناغي په ياد راوړو ۴ چه مونږ اي ورونړو دَ الله
۵ محبوبو ستاسي په غوره توب خبر يوُ ۵ ځکه چه څمونږ انجيل تاسي ته
نه تش په کلام سره بلکه په قدرت او په روح القدس او په ډير يقين
سره تاسي ته وشه لکه چه تاسي پوهيږئ چه مونږ ستاسو دَپارَ
٦ په تاسي کښ څرنګ شوِي وُو ٦ او تاسي څمونږ او دَ خداوند مقتديان
شوئِ چه تاسي کلام په ډيري تنګئِ کښ دَ روح القدس په خوشحالئِ سره
٧ قبول کړ ٧ په هسي شان سره چه تاسي دَ مقدونيي او دَ اخائيي دَ
٨ ټولو مؤمنانو دَپارَ نمونه شوئِ ٨ ځکه چه له تاسي دَ خداوند دَ کلام
آواز وشه نه تش په مقدونيه او په اخائيه کښ بلکه په هرځاي
کښ ستاسي ايمان چه په الله بانِدِ دَي مشهور شه تر دي حده چه
٩ څمونږ دَ ويلو هيڅ حاجت نشته ٩ ځکه چه دوي په خپله څمونږ په
حق کښ زيري کوِي چه مونږ په تاسي کښ څرنګ دخل لرُو او تاسي
څرنګ له بتانو نه دَ الله په لوري وګرزيدئِ تا چه ژوندي او حقيقي
١٠ الله له بندګي وکړئِ ١٠ او دَده دَ ځوي چه له مړو ئي پورته کړ له
آسمانونو نه منتظر اوسئِ يعني يسوع چه مونږ له راتلونکي غضب
نه خلاصوِي ❊

# دويم باب

۱ ۱ څکه اي ورونړو تاسي په خپله هم په دي پوهيږئ چه ځمونږ دخل په
۲ تاسي کښ باطل نه وه ۲ بلکه اګر که مونږ وړاندِ په فليپي کښ ډير عذاب
او سپکاوي و موندل لکه چه تاسي پوهيږئ نو بيا مونږ په خپل الله
کښ زړورتوب وکړ چه په انجيل دَ الله په ډيري سعي سره تاسي ته
۳ خبر درکوو ۳ څکه چه ځمونږ نصيحت له ګمراهئ او له ناپاکئ او له
۴ ټګئ سره نه وه ۴ بلکه لکه چه له الله نه خوښ کړي شوي يوچه په
انجيل امانتدار شوي يو هم هسي خبر ورکوو نه لکه چه سړي راضي
۵ کوو بلکه الله چه ځمونږ زړونه ازمايي ۵ لکه چه تاسي پوهيږئ چه
مونږ هيڅکله دَ خوشامدو په کلام کښ نه يو او نه په بهانئ دَ طمعي
۶ کښ الله شاهد دَي ۶ او نه مو له سړيو نه نه له تاسو او نه له نورو
عزت غوښت اګر که مونږ توانيدلو چه په تاسي بار شو لکه رسولان دَ
۷ مسيح ۷ بلکه ستاسي په مينځ کښ نرم وُو لکه چه دائي خپل هلکان
۸ پالي ۸ هم هسي مونږ ستاسي مينه دار يو مونږ راضي وُو چه نه تش
انجيل دَ الله تاسي ته درکړو بلکه خپل ځانونه هم څکه چه تاسي په مونږ
۹ باندي ګران وئ ۹ څکه چه تاسي اي ورونړو ځمونږ محنت او مشقت ياد
لرئ چه مونږ دَدي دَپارَ چه له تاسي نه په چا باندي بار نه شو
شپه او ورځ مو کار کاوه او تاسو ته مو په انجيل دَ الله وعظ
۱۰ وکړ ۱۰ تاسي شاهدان يئ او الله (هم) چه مونږ څرنګ په تاسي کښ
په پاکئ او په صداقت او په بيعيبئ کښ وُو په تاسو مؤمنانو کښ
۱۱ ۱۱ لکه چه تاسي خبر يئ چه مونږ له تاسي نه هر يوه ته څرنګ زارئ
کولي او دلاسائي او شاهدي مو درکوله لکه چه پلار خپلو فرزندانو ته
۱۲ ۱۲ چه تاسي په لايقئ سره دَ هغه الله ګرزيدنه کوئ چه تاسي يې
خپلي بادشاهئ او جلال ته وبللئ
۱۳ ۱۳ دي دَپارَ مونږ هم دَ الله شکر کوو چه هرکله چه تاسي

هغه کلام دَ الله چه له مونږ مو واوریده نو تاسي هغه کلام دَ سړیو
دَ کلام په شان نه بلکه لکه په حقیقت کښ کلام دَ الله دَي هسي
۱۴ مو قبول کړ هغه چه په تاسي مؤمنانو کښ اثر هم کوي ۱۴ څکه چه
تاسي اي ورورو مقتدیان دَ هغو کلیسیاؤ دَ الله شوئ چه په
یهودیه کښ دَ یسوع مسیح دِي ولي چه تاسي هم له خپلو قومونو
۱۵ نه هم په هغو څیزونو وردردیدلي لکه دوي هم له یهودیانو ۱۵ چه دوي
هم خداوند یسوع اوخپل نبیان قتل کړل او مونږ ئي وربړولو
او ناراض کونکي دَ الله او له ټولو سړو مخالفان دِي او مونږ منعَ
کوي چه له غیر قومونو سره خبري وکړو تا چه دوي خلاص شي تر دي
چه مدام خپلي خطاوي پوره کړي څکه په دوي باندي غضب انتها
۱۶ ته رسیدلي دي ۱۶ مګر مونږ اي ورورو چه څو مُده په مخ سره نه
په زړه سره له تاسي بیل شولو په ډیر شوق سره مو زیات کوشش
وکړ چه ستاسي مخ ووینو
۱۷ ۱۷ او په دي سبب ما پولس یو دوه واره اراده وکړه چه
تاسي ته درشم مګر شیطان منعَ کړو ۱۸ نو څمونږ امید یا خوشحالي
۱۸ یا تاج دَ فخر څه دَي تاسي څمونږ دَ خداوند یسوع مسیح دَ وړاندي
۱۹ دَده په راتلو کښ نه یئ څه؟ ۱۹ څکه چه تاسي څمونږ جلال او خوښي یئ

## دریم باب

۱ ۱ دَدي دَپارَ هرکله چه مونږ نور زغم کولي نه شه څکه چه په آتیي
۲ کښ په یواځي پاتي کیدلو خوښ شولو ۲ او مونږ خپل طمطاؤس ورور
اوخادم دَ الله او په انجیل دَ مسیح کښ درواستاوه دي دَپارَ چه
تاسي مضبوط کړي او تاسي ته دَ ایمان په حق کښ نصیحت وکړي
۳ ۳ تا چه هیڅوک له تاسي نه په دي تنګسو کښ ونه خوځیږي څکه
چه تاسي په خپله پوهیږئ چه مونږ هم دَدي دَپارَ ټینبي شوي یو
۴ ۴ او هرکله چه مونږ له تاسي سره وو نو تاسي نه مو وړاندي

ووېل چه څمونږ تنګسيه به ضرور وشي لکه چه وشوه او تاسي پوهيږئ
۵ له دي سببَ ما هم نور زغم کولي نه شه نو مِ ستاسي دَ ايمان دَ ۵
معلومولو دَپارَ درواستاوه هسي نه وِي چه په څه شان آزمايونکي ازمايلي
يئ او څمونږ محنت عبث شي ۶ ليکن اوس چه طِمطاؤس له تاسي نه ومونږ ۶
ته راغي او ستاسي دَ ايمان او دَ محبّت زيري لئ مونږ ته راکړ او داچه تاسي
مونږ هميشه په نيکي سره يادوئ څمونږ دَ ليدلو مشتاق يئ لکه چه
مونږ هم ستاسي يو ۷ دي دَپارَ اي ورونړو مونږ په خپل ټول ضرورت ۷
او تنګسيه کښ ستاسي دَ ايمان په سبب تسلّي بياموندو ۸ ځکه چه مونږ ۸
اوس ژوندون کوُو چه تاسي په خداوند کښ ودريږئ ۹ ځکه چه مونږ څه ۹
شکرګذاري الله ته پيش کولي شوُ ستاسي په باب دَ هغي ټولي خوشحالئ په
سبب چه مونږ ستاسي دَپارَ دَ الله دَوړاندِ پري خوشحاليږو ۱۰ مونږ شپه ۱۰
او ورځ ډيره ډيره دُعا کوو چه ستاسي مخ ووينو او ستاسي دَ ايمان کموالي
جوړ کړو

۱۱ نو څمونږ الله او پلار په خپله او خداوند يسوع مسيح دِ څمونږ لار ۱۱
ستاسي په لوري سمه کړي ۱۲ او خداوند دِ تاسي په محبّت کښ يو له بل سره ۱۲
او له ټولو سره ډېر او زيات کړي لکه چه مونږ هم له تاسي سره يو ۱۳ تاچه ۱۳
ستاسي زړونه څمونږ دَ الله پلار دَ وړاندِ په پاکئ کښ بيعيبَ مضبوط کړي
څمونږ دَ خداوند يسوع مسيح په راتلو کښ له خپلو ټولو پاکانو سره ✦

## څلورم باب

آغرض دا دَي اي ورونړو مونږ تاسو ته په خداوند يسوع مسيح کښ سوال او ۱
زاري کوُو لکه چه تاسي له مونږ نه موندلي دِي چه څرنګ ګرزيدل او رضامندي
دَ الله لټول تاسي ته بايده دِي هم هسي ګرزئ تاچه ډېر زياتي توب وکړئ -
۲ ځکه چه تاسي پوهيږئ چه مونږ دَ خداوند يسوع مسيح په وسيلي تاسو ته ۲
څه حکمونه درکړل ۳ ځکه چه اراده دَ الله دا ده يعني پاکي ستاسو چه له ۳
زنا منعَ شئ ۴ او هر يو له تاسي نه پوه شي چه څرنګ خپل لوښي په پاکئ ۴

۵ او په عزت سره حاصل کړي ۵ نه په هوس دَ شهوت کښ لکه غیرقومونه چه
۶ الله نه پیژني ۶ چه په هیڅ کار کښ په خپل ورور تیري او طمع نه کړي ځکه چه
خداوند دَدي ټولو بدل اخستونکي دَي لکه چه مونږ تاسي ته وړاندي هم
۷ وویل او شاهدي مو درکړه ۷ ځکه چه الله مونږ ناپاکۍ لره بللي نه یو بلکه په
۸ پاکۍ کښ ۸ دَدي دَپارَ هغه سړي چه سپکه کوي دَ سړو نه بلکه دَ الله سپکه
کوي چه مونږ ته ئې روح القدس هم راکړ
۹ ۹ او دَ ورورولۍ دَ محبت په باب حاجت نشته چه څه درولیکم ځکه چه
تاسو په خپله یو له بل سره په محبت کولو له الله آموخته کړي شوي یئ
۱۰ ۱۰ لکه چه له دغو ټولو ورونړو سره چه په مقدونیه کښ دِي داسي
کوئ لیکن اي ورونړو مونږ تاسي ته سوال کوُو چه ډیر زیاتي توب وکړئ
۱۱ ۱۱ او په دي کښ دَ عزت مشتاق شئ چه په قرار اوسئ او په خپل کار کښ
لګیا اوسئ او په خپلو لاسونو کار کوئ لکه چه مونږ تاسي ته حکم درکړي
۱۲ دَي ۱۲ تاچه تاسي دَ باهروالو دَ وړاندِ په ښائسته طور وګرزئ او دَ هیڅ
څیز محتاج نه شئ
۱۳ ۱۳ او اي ورونړو مونږ نه غواړو چه تاسي دَ اوده کیدونکو په باب
ناخبره شئ دي دَپارَ چه تاسي دَ هغو نورو په دود چه امید نه لري زهیر
۱۴ نه شئ ۱۴ ځکه چه که مونږ ایمان راوړو چه یسوع مړ شه او پاڅیده نو
الله به هغوي هم چه اوده شوي دِي دَ یسوع په وسیلي له ده سره راولي
۱۵ ۱۵ ځکه چه دا خبره دَ خداوند په کلام سره درته وایُو چه مونږ چه ژوندي
او باقي یوُ دَ خداوند تر راتلو پوري به له اوده شویو وړاندي نه شوُ
۱۶ ۱۶ ځکه چه خداوند به په خپله په بانګ سره دَ مقرّبو فرښتو په آواز سره
او په شپیلۍ دَ الله له آسمانونو راکوز شي او هغوي چه په مسیح کښ
۱۷ مړه شوي دِي وړنبي به پاڅي ۱۷ پس له هغه مونږ چه ژوندي او باقي یوُ
له هغو سره به په اوریځو کښ راکښلي شوُ تاچه په هوا له خداوند سره
ملاقات وکړوُ او مونږ به له خداوند سره مدام شوُ پس په دي خبرو

سره یو بل ته تسلي ورکوئ *

# پنځم باب

١ آ مگر اي ورونړو دَ وقتونو او دَ زمانو په باب تاسي ته دَ لیکلو هیڅ حاجت
٢ نشته ٢ ځکه چه تاسي په خپله اي ورونړو په غور سره پوهیږئ چه دَ
٣ خداوند ورځ داسي راځي لکه چه په شپي کښ غل ٣ هرکله چه وايي
چه سلام او امن نو ناڅاپه به هلاکت ورباندي راشي لکه درد دَ لنگانه
۴ بارداري لره او خلاصون به نه موبي ۴ مگر تاسي اي ورونړو په تیاري کښ
٥ نه يئ تا چه هغه ورځ سو دَ غله په شان ونیسي ٥ تاسي ټول زامن دَ
٦ نور او زامن دَ ورځي يئ او مونږ دَ شپي او دَ تیاري نه یو ٦ دي دَپارَ
بایده دي چه دَ نورو په شان اوده نه شو بلکه بیدار او پرهیزگار دِ
٧ شو ٧ ځکه هغوي چه اوده کیږي دَ شپي اوده کیږي او هغوي چه بدمستي
٨ کوي په شپه کښ بدمستي کوي ٨ مگر مونږ چه دَ ورځي یو پرهیز دِ وکړو دَ
٩ ایمان او دَ محبت زغره او دَ خلاصي دَ امید خول دِ واغوندو ٩ ځکه چه الله
مونږ دَ غضب دَپارَ مقرر کړي نه یو بلکه چه دَ خپل خداوند یسوع مسیح
١٠ په وسیلي نجات حاصل کړو ١٠ چه دي ځمونږ دَپارَ مړ شه تا چه مونږ که
١١ بیدار که اوده یو ټول دِ دَده سره ژوندون وکړو ١١ دي دَپارَ یو بل ته تسلي
ورکوئ او یو بل بنا کوئ لکه چه اوس ئي کوئ

١٢ ١٢ او اي ورونړو مونږ تاسي ته سوال کوو چه تاسي هغوي چه
ستاسي په مینځ کښ محنت کوي او په خداوند کښ په تاسي ولاړ دي او
١٣ نصیحت درته کوي و پیژنئ ١٣ او دَ دوي دَ کار دَپارَ په محبت کښ ئي لا ډیر
١۴ زیات عزت کوئ او په خپل مینځ کښ په صلحه کښ اوسئ ١۴ او اي
ورونړو مونږ تاسي ته زاري کوو چه سرکښو ته نصیحت کوئ او ورکوټو
١٥ خانونو ته تسلي ورکوئ ضعیفانو ته تکیه ورکوئ دَ ټولو زغم کوئ ١٥ گورئ
چه هیڅوک دِ له بل سره دَ بدي په بدله بد نه کوي بلکه تل یو بل لره
١٦ او ټولو لره په نیکئ پسي شئ ١٦ تل خوشحال اوسئ ١٧ او بي ناغي دعا کوئ

١٨ ¹⁸ په هري خبري کښ شکر کوئِ ځکه چه اراده دَ الله په يسوع مسيح کښ
١٩ ٢٠ دا ده ستاسو په باب ¹⁹ روح مه مړ کوئِ ²⁰ نبوّتونه سپک مه گڼړئِ -
٢١ ٢٢ ²¹ هره خبره و ازمايئِ ښيګړه ونيسئِ ²² له هر قسم بدئِ نه منع شئِ
٢٣ ²³ او الله دَ صلحي دِ په خپله تاسي پوره پاک کړي او ستاسو
هر څه يعني روح او ځان او جُسه دِ څموږ دَ خداوند يسوع مسيح تر راتلو
٢٤ پوري بي عيبَ کامل وساتي ²⁴ امين هغه دَي چه تاسي بولي او چه دا
به هم وکړي
٢٥ ٢٦ ²⁵ اي ورونړو څموږ دَپارَ دُعا کوئِ ²⁶ ټولو ورونړو ته په پاکو
ښکلولو سره سلام وائِي
٢٧ ²⁷ او تاسو ته په خداوند قسم درکوم چه دا خط دِ په ټولو ورونړو
٢٨ کښ ولوستلي شي ²⁸ څموږ دَ خداوند يسوع مسيح فضل دِ له تاسي
سره وِي - آمين *

# دویم خط دَ پولس رسول تسالونیکیانو ته

## اول باب

۱ آ پولس او سلوانوس او تمطاؤس دَ تسالونیکیانو وکلیسي ته چه
۲ په الله پلار خموږ او په خداوند یسوع مسیح کښ دَه ۲ فضل او
سلامتي دِ خموږ دَ پلار الله نه او له خداوند یسوع مسیح نه په تاسي
باندي وِي

۳ ۳ بایده دِي چه موږ ستاسو دَپارَ اي وروڼو مدام دَ الله
شکر لکه چه مناسب دِي وئ کړو ځکه چه ستاسي ایمان ډیر لوئیږي
۴ او ستاسي دَ ټولو محبت یو دَ بل سره ډیریږي ۴ تردي چه موږ په خپله
دَ الله په کلیساؤ کښ ستاسو دَ صبر او دَ ایمان په سبب فخر کوُو په
۵ هغو ټولو ربړونو او تنګسو کښ چه تاسي ئي زغمئ ۵ او دا دَ الله دَ صادق
حکم دلیل دَي چه تاسي دَ الله دَ بادشاهئ لایق وګنړلي شئ چه دَ هغه
۶ دَپارَ تاسي هم درديږئ ۶ ځکه چه دَ الله په نزد دا صادقه ده چه هغوي ته
۷ چه تاسي تنګ کوِي دَ تنګئ بدله ورکوِي ۷ او تاسي چه په تنګ کړي شوِي
یِ له موږ سره آرام مومئ هغه وقت چه خداوند یسوع له آسمانه دَ
۸ خپل قدرت له فرښتو سره په لنبي وهونکي اور کښ کشف شي ۸ هغو ته
چه الله نه پیژني او هغو ته چه خموږ دَ خداوند یسوع دَ انجیل تابعداري
۹ نه کوِي بدله به ورکړي ۹ چه دوي به دَ خداوند له ځهري نه او دَده دَ
۱۰ قوت له جلال نه سزا مومِي یعني ابدِي هلاکت ۱۰ هر کله چه دَي راشي
چه په خپلو پاکانو کښ جلال ورکړي شي او په خپلو ټولو مؤمنانو کښ
ورته تعجب وکړي شي په هغي ورځي کښ ځکه چه خموږ شاهدِي ستاسي په
۱۱ مینځ کښ تصدیق کړي شوه ۱۱ دي دَپارَ موږ ستاسو په باب مدام دُعا
کوُو چه خموږ الله تاسي لایق دَدي بلني وګنړي او ټوله خوښي دَ نیکئ او

۱۲ کار دَ ایمان له قدرت سره په تاسي کښې پوره کړي ۱۲ تا چه خښتن دَخداوند
یسوع نوم په تاسي کښې جلال مومي او تاسي په ده کښې په موافق دَ فضل
خښتن دَ الله او دَخداوند یسوع مسیح ٭

## دویم باب

۱ ۱ مګر اي ورونړو مونږ دَ خپل خداوند یسوع مسیح دَ راتلو او له ده سره
۲ خښتن دَ جمع کیدلو په باب تاسو ته سوال کوو ۲ چه تاسي په دي خیال
زر له عقلَ وخوځیدلي نه شئ او چه و ښه ویریږئ نه له (کوم) روح
نه نه له کلام نه نه له خط نه ګویا کښې چه هغه خښتن له طرفَ وي
۳ لکه چه دَخداوند ورځ حاضره ده ۳ هیڅوک دِ تاسي په هیڅ شان سره
ونه غولوي ځکه چه هغه به را نه شي بي له دي چه اوّل مرتدوالي راشي
۴ او دَ خطا سړي (یعني) دَ هلاکت زوي کشف کړي شي ۴ هغه مخالف چه
خپل ځان له هر یوه نه چه الله یا معبود ور ته ویلي شي هسکوي چه
دَ الله په هیکل کښې کښیني او خپل ځان داسي ظاهروي چه (باري)
۵ دي الله دَي ۵ ګنړه ستاسي په یاد نه دِي څه؟ هغه وقت چه زه له
۶ تاسي سره وم دا مِ تاسي ته ویل ۶ او اوس تاسي پوهیږئ چه څه منع کونکي
۷ دي تا چه هغه په خپل وقت کشف کړي شي ۷ له دي سبب چه اوس هم
هغه راز دَ بدئ اثر کوي تش (ضرور دي) هغه چه تر اوسَ منعَ کونکي
۸ دَي له مینځ نه لري کړي شي ۸ نو هاله به هغه بي شرعي کشف کړي شي
چه خداوند به ئي دَ خپلي خولي په دم سره هلاک کړي او دَخپلو راتلو
۹ په ظهور سره به ئي باطل کړي ۹ چه دَ هغه راتله به دَ شیطان دَ
تاثیر په موافق په هر قسم قدرت او په نخښو او په کراماتونو دَ دروغو
۱۰ سره وي ۱۰ او په ټول فریب دَ بي انصافئ سره په هلاکیدونکو کښې ځکه چه
۱۱ دوي دَ رښتني محبت چه پرِ خلاصیدل قبول نه کړل ۱۱ او دي دَ پارَ به
الله دوي ته عمل دَ ګمراهي واستوي تر دي حده چه دوي په دروغو باور
۱۲ وکړي ۱۲ تا چه په هغو ټولو چه په رښتني ئي ایمان را نه وړ بلکه په

دروغو خوښ وو حکم وشي
۱۳ ۱۳ لیکن اي ورونړو دَ خداوند محبوبانو مونږ ته بایده دِي چه
ستاسو دَپارَ مدام دَ الله شکر کوو چه الله تاسي له اوّل نه دَ روح په
۱۴ پاکۍِ او دَ رښتنئِ په ایمان سره دَ نجات دَپارَ غوره کړيِ ۱۴ او په دي
سبب ئې تاسي څمونږ دَ زیري په وسیلي و بللِٔ چه څمونږ دَ خداوند یسوع
۱۵ مسیح جلال حاصل کړيِ ۱۵ نو اي ورونړو ټینګ اوسيِ او هغه تعلیمونه
چه تاسو یا څمونږ په کلام سره یا څمونږ په خط سره زده کړي دِي ونیسیِٔ
۱۶ ۱۶ او څمونږ خداوند یسوع مسیح په خپله او څمونږ پلار الله چه په
مونږ باندي ئې مینه وکړه او په فضل سره ئې ابدي تسلّي او نیک امید
۱۷ راکړ ۱۷ ستاسي زړونو ته دِ تسلّي درکړي او تاسي دِ په ټول کار او کلام
کښِ مضبوط کړي ❊

## دریم باب

۱ آغرض دا دَي اي ورونړو څمونږ په حق کښِ دُعا کويِ تاچه دَ خداوند
۲ کلام دَووکړي او داسي جلال ومومي لکه چه په تاسي کښِ دَي ۲ او دا
چه مونږ له خوشو او له بدو سړو خلاص شُو ځکه چه دَدغو ټولو ایمان
۳ نشته ۳ مګر هغه خداوند امین دَي چه تاسي به مضبوط کړي او له
۴ هغه شریر نه به مو وژغوري ۴ او ستاسي په باب په خداوند کښِ څما
دا یقین دَي چه تاسي به هغه څیزونه چه مونږ ئې حکم درکوو په عمل راوړيِ
۵ او و به ئې کړيِ ۵ او خداوند دِ ستاسي زړونه دَ الله دَ محبت او دَ مسیح دَ
صبر په لوري سم کړي
۶ ۶ او تاسي ته مونږ اي ورونړو دَ خپل خداوند یسوع مسیح په نوم
حکم درکوو چه تاسي له هره وروره چه بي‌ترتیب ګرزي او نه دَ هغه
۷ تعلیم په موافق چه له مونږ ئې واخست په ډډه شئِ ۷ ځکه چه تاسي په خپله
پوهیږيِ چه څرنګ بایده وُو چه تاسي څمونږ اقتدا وکړيِ ځکه چه مونږ
۸ ستاسي په مینځ کښِ بي‌ترتیب نه ګرزیدو ۸ او نه مو له چانه وړیا ډوډئِ

وخوره بلکه ورځ او شپه مو په محنت او مشقّت سره کار کاوه تا چه
۹ له تاسي نه په چا باندي بار نه شُو ۹ نه دي دَپارَ چه کویا کښ موږ
اختیار نه لرُو بلکه دي دَپارَ چه موږ خپل ځانونه ستاسي دَپارَ نمونه
۱۰ درکړُو تا چه تاسي زموږ اقتدا وکړئ ۱۰ او هرکله چه موږ له تاسي سره
وُو نو دا حکم مو درکړ چه هغه څوک چه کار کول نه غواړي (ډوډئ)
۱۱ دِ هم نه خوري ۱۱ ځکه چه موږ اورُو چه ځني له تاسي بي ترتیب کرزي او
۱۲ هیڅ کار نه کوي بلکه هسي کرزي ۱۲ داسي خلقو ته موږ دَ خپل خداوند
یسوع مسیح حکم ورکوُو او نصیحت ورته کوو چه په خاموشئ سره دِ
۱۳ کار کوي او خپله ډوډئ دِ خوري ۱۳ مګر تاسي اي ورونړو په نیک
۱۴ کار کښ ستړي مه شئ ۱۴ او که چري څوک زموږ کلام چه په خط
سره دَي و نه منِي نو هغه نښه کړئ او کډون ورسره مه کوئ چه
۱۵ وشرمیږي ۱۵ مګر دَ دښمن په شان ئې مه ګڼړي بلکه لکه ورور هسي
ئې وپوهوئ

۱۶ ۱۶ او دَ صلحي خداوند دِ په خپله تاسي ته مدام په هر شان
سره سلامتي درکړي خداوند دِ له تاسي ټولو سره وِي

۱۷ ۱۷ زما پولس له لاس نه دا سلام چه په هر خط کښ نخښه ده
۱۸ په دي شان ئې لیکم ۱۸ زموږ دَ خداوند یسوع مسیح فضل دِ له
تاسي ټولو سره وِي- آمین *

# اول خط دَ پولس رسول طمطاؤس ته

## اول باب

۱ پولس رسول دَ یسوع مسیح پهٔ موافق دَ حکم څموږ دَ خلاصوونکي ۱
الله او دَ یسوع مسیح څموږ دَ اُمید ۲ طمطاؤس ته چه په ایمان ۲
کښ حقیقي فرزند دي فضل او رحم او سلامتي دِ څموږ دَ پلار الله
او څموږ دَ خداوند یسوع مسیح وِي
۳ هغه وقت چه زه مقدونیې ته تلونکي وم تا ته مِ زارِي وکړه ۳
چه په افسس کښ پاتې شه دَدي دَپارَ چه څنو ته حکم وکړي چه په
بل شان تعلیم ورنه کړي ۴ او په قصّو او په بيحدو نسبنامو متوجه ۴
نه شي چه تفحصونه پیدا کوِي په ځاى دَ هغي ناظرَيَ دَ الله چه په ایمان
کښ دَه ۵ مګر انجام دَ هغه حکم محبت دَي چه په پاک زړه او په ۵
نیک تمیز او په بيريا ایمان سره وِي ۶ او څني په دي خبرو کښ وار ۶
خطا شوِي خوشو خبرو ته ګرزیدلي دِي ۷ دا غوارِي چه معلمان دَ شرعي ۷
شي او نه پوهیږِي چه څه وايي او کومي خبري تکراروِي ۸ مګر موږ پوهیږو ۸
چه شریعت ښایسته دَي که چرې ئي څوک دَ شریعت په طور استعمال
کوِي ۹ چه شرعه دَ صادق دَپارَ ینبې شوي نه دَه بلکه دَ بيشرعو او دَ ۹
یاغیانو دَپارَ دَ بيدینو او دَ خطاکارانو دَپارَ دَ ناپاکو او دَ پلیتانو دَپارَ
او دَ پلروِنو او دَ میندو وژلونکو دَپارَ ۱۰ دَ سرو وژلونکو او دَ زانیانو او ۱۰
دَ نرانو څملاستونکو دَ مریونو تښتونکو او دَ دروغژنو او دَ دروغو قسم
خوړونکو دَپارَ او که بل څه شي وِي چه دَ صحي تعلیم په خلاف وِي
۱۱ دَ مبارک الله دَ انجیل دَ جلال په موافق چه زه پرِي امانتدار شوي یم ۱۱
۱۲ او زه دَ خپل خداوند یسوع مسیح چه ما ته ئي قدرت راکړ ۱۲
شکرګذار یم چه زه ئي امانتدار وګڼلم په خدمت ئي مقرر کړم-

۱۳ ۱۳ زه خو ورَاندي کفر ويونکي او ربړونکي او مغرور وم ليکن په ما باندي
۱۴ رحم وکړي شه ځکه چه ما په نادانئ سره بي ايماني وکړه ۱۴ مگر ځمونږ دَ
خداوند فضل له ايمان او له محبّت سره چه په يسوع مسيح کښ دَي ډير
۱۵ زيات شه ۱۵ دا کلام امين او دَ کامل قبولولو لايق دَي چه مسيح يسوع
۱۶ دنيا ته راغي چه خطاکاران خلاص کړي چه دَ دوي اوّل زه يم ۱۶ ليکن په
ما باندي ځکه رحم وکړي شه چه يسوع مسيح وړاندي په ما بانده کامل
صبر ظاهر کړي تاچه دَ هغو دَپارَ چه په ده باندي به دَ ابدي ژوندانه
۱۷ دَپارَ ايمان راوړي نمونه شم ۱۷ اوس دَ ابدي زمانو بادشاه ته چه نه زوال
لري او نه ليده کيږي هغه واحد الله ته دِ عزّت او تمجيد ترابدالاباد
پوري وِي-آمين
۱۸ ۱۸ اي طِمطاوسَ فرزنده زه تا ته دَ هغو پيشخبرو په موافق چه
وړاندي ستا په حق کښ شوي دِي دا حکم درته سپارم چه ته په هغو
۱۹ ځيزونو په ښه جنگ سره وجنگيږي ۱۹ او ته ايمان او نيک تميز لري
چه ځنو دغه ترک کړي دَي او دَ ايمان په جهت ئي بيړئ ماته شوه چه له
هغو نه هومنيوس او اسکندر دِي چه شيطان ته مې حواله کړل تاچه
تنبيه وموي چه کفر و نه وايِي ٭

# دويم باب

۱ ۱ نو زه دا نصيحت له ټولو ورنبي کوم چه زاري او دُعا وي او شفاعتونه
۲ او شکرونه دِ دَ ټولو سرو دَپارَ وکړي شي ۲ دَ بادشاهانو او دَ هغو
ټولو دَپارَ چه په لويو ځايونو کښ دِي تاچه په هري ديندارئ او معتبرئ
۳ کښ په راحت او په قرارئ سره ژوندون تيرکړو ۳ ځکه چه ځمونږ دَ
۴ نجات ورکونکي الله دَ وړاندي دا ښه او قبوله ده ۴ چه دي غواړي چه
۵ ټول خلاصي بيامومي او دَ رښتيني معرفت ته راشي ۵ ځکه چه يو الله دَي
او يو مينځگړي دَ الله دَ سرو په مينځ کښ هم هغه سړي يسوع مسيح دَي
۶ ۶ چه ده ځپل ځان دَ ټولو دَپارَ فدا کړ چه په ځپلو وقتونو کښ شاهدي

شي ۷ او زه ددي دپاره واعظ او رسول مقرر شوي يم زه رښتيا ۷
وايم او دروغ نه وايم دَ غير قومونو استاذ په ايمان او په رښتيني
کښ

۸ نو زه دا غوارم چه سړي دِ په هر ځاي کښ دعا کوِي بي غصتي ۸
او بي حجتونو دِ پاک لاسونه پورته کړِي ۹ هم هسي دِ ښځي خپل ځانونه ۹
په ادبناکو جامو سنګار کړِي په حيا او په هوښيارِيِ سره نه په کوڅو
او په سرو زرو او په مرغلرو او په ګرانبها جامو کښ ۱۰ بلکه په نيکو ۱۰
کارونو سره لکه چه دَ الله پرستِيِ دعوي کونکو ښځو لره ښايي ۱۱ ښځه دِ ۱۱
په قرارِيِ او په ټولِي فرمانبردارِيِ سره تعليم اخلِي ۱۲ او زه ښځي ته اذن ۱۲
نه ورکوم چه تعليم ورکوِي او نه چه په ميړه باندي خاوندي وکړِي
بلکه قراره دِ اوسِي ۱۳ ځکه چه آدم ورمبي جوړ کړي شه پسي حوا- ۱۳
۱۴ او آدم و نه غولولي شه مګر ښځه وغولولي شوه په تعدي کښ پريوته ۱۴
۱۵ ليکن دَ هلک په راوړو سره به خلاصه شِي که چرِي دوي په ايمان ۱۵
او په محبت او په پاکِيِ او په هوښيارِيِ سره پاتي شِي +

## دريم باب

۱ دا کلام برحق دَي چه که څوک دَ اُسقوفِيِ آرزو لرِي نو دَ نيک کار ۱
خواهش دِ کوِي ۲ نو بايده دِي چه اسقوف بي ملامتيا وِي دَ يوي ښځي ۲
ميړه پرهيزګار هوښيار ادبناک مسافردوست قابل دَ تعليم ورکولو
۳ نه دَ شرابو مست نه وهونکي بلکه حليم نه جنګي نه زردوست ۳
۴ او چه دَ خپل کور تدبير په ښه شان سره کوِي او چه په ټولي ۴
معتبرِيِ سره فرزندان په خپل تابعدارِيِ کښ لرِي ۵ او که څوک دَ خپل ۵
کور په تدبير کولو نه پوهيږِي نو څرنګ به دَ الله دَ کليسا خبردارِي
وکړِي ۶ او نه دِ نوي مريد وِي هسي نه چه سرهوا شِي دَ ابليس ۶
په عدالت کښ پريوزِي ۷ او دا هم بايده دِي چه دَ بهر له خلقو ښائسته ۷
شاهدِي لرِي هسي نه چه په ښکنځلو او دَ ابليس په لومي کښ پريوزِي

٨ هم هسي دِ خادمان معتبر وِي نه دوه ژبي نه متوجه دَ ډيرو شرابو
٩ ١٠ او نه حريص دَ ناروا ګټې ٩ او راز دَ ايمان دِ په پاک تميز کښ لري ١٠ او
دوي دِ ورښې وآزمايلي شي پس له هغه که بې ملامته وِي نو خادم
١١ دِ شي ١١ په دي شان دِ ښځې معتبري وِي نه چغلي خوري (بلکه) پرهيزګاري
١٢ په هر کار کښ امانتداري ١٢ خادمان دِ دَ يوي ښځي ميړونه وِي او دَ خپلو
١٣ فرزندانو او دَ کورونو دِ په ښه شان تدبير کړي ١٣ ځکه هغوي چه په
ښه طور سره ئي خادمي کړي دَه نو دَ خپل ځان دَپارَ ئي ښه مرتبه
او په هغه ايمان کښ چه په مسيح يسوع کښ دي ډير همت پيري
١٤ ١٤ زه په دي اميد چه ژر به تا ته در شم دا خبري درليکم-
١٥ ١٥ ليکن که درنګ وکړم نو ته پوه شه چه دَ الله په کور کښ چه دَ
ژوندي الله کليسا دَ رښتيې ستنه او بنياد دي څرنګ تيريدل بايده
١٦ دي ١٦ او په اتفاق سره دَ تقوىٰ راز لوي دَي هغه په جسم کښ
ظاهر شه په روح کښ صادق کړي شه فرښتو ته وليدلي شه په
غير قومونو کښ وعظ پرې وکړي شه په دنيا کښ ايمان پرِ راوړلي
شه په جلال کښ پورته کړي شه ÷

## څلورم باب

١ ١ ليکن روح صاف وائي چه په آخرو زمانو کښ به څني له ايمانَ
بيل شي او دَ ګمراه کونکو ارواحونو او دَ ديوانو تعليمونو ته به توجه وکړي
٢ ٢ دَ دروغ ويونکو دَ رياکارئ په سبب او چه په خپل تميز کښ داغ کړي
٣ شوي دي ٣ چه له نکاح کولو منع کړي او حکم ورکوي چه له هغو
خوراکونو دِ پرهيز کړي چه الله پيدا کړي دي چه له مؤمنانو او له پيژاندونکو
٤ دَ رښتياي په شکر سره استعمال وکړي شي ٤ ځکه چه هر پيدايښت
دَ الله ښه دي او هيڅ څيز دَ غورزولو لايق نه دَي که چرې په شکر
٥ سره واخستلي شي ٥ ځکه چه هغه دَ الله په کلام او په شفاعت سره
پاکيږي

۶ نو که نه دا خبري ورونړو ته ور په زړه کړي نو ته به دَ یسوع مسیح ۶
ښه خادم شي دَ ایمان په کلام او په هغه ښه تعلیم چه تا يې پیروي
کړي ده آموخته به شي ۷ لیکن له پلیتو او دَ بوډي والو له نقلونو لري ۷
شه او دَ تقویٰ دَپارَ په خپل ځان شغل کوه ۸ ځکه چه جسماني شغل ۸
دَ لږ څه دَپارَ فایده‌مند دَي مګر تقویٰ دَ ټولو خبرو دَپارَ فائده‌منده ده
ځکه چه دَ اوسنۍ او دَ راتلونکي ژوندانه وعده لري ۹ دا کلام امین او دَ ۹
پوره قبولولو لایق دَي ۱۰ ځکه چه مونږ محنت او سعي کوو چه په ژوندي ۱۰
الله چه دَ ټولو سړو خاص دَ مؤمنانو خلاصونکي دَي امید لرو ۱۱ دَ دي ۱۱
خبري حکم ورکوه او ور زده يې کړه ۱۲ هیڅوک دِ ستا ځواني سپکه و نه ګڼړي ۱۲
بلکه په کلام او په خصلت او په محبت او په ایمان او په پاکۍ کښ دَ
مؤمنانو نمونه شه ۱۳ څو تر درتلو پوري په لوستو په نصیحت په تعلیم ۱۳
متوجه اوسه ۱۴ له هغه نعمت نه چه په تا کښ دَي او تا ته دَ نبوت ۱۴
په وسیلي دَ سپین ږیرو دَ لاس په کیښودلو سره درکړي شه بې پروا مه شه
۱۵ په دي خبرو فکر کوه په دغو کښ اوسه تا چه ستا ترقي په ټولو ۱۵
باندي ښکاره شي ۱۶ او خپل ځان او خپل تعلیم ته متوجه شه او په ۱۶
دغو کښ پاتي شه ځکه چه په دغو کولو سره به هم خپل ځان هم
خپل اوریدونکي خلاص کړي ❊

## پنځم باب

۱ سپین ږیري مه ملامت کوه بلکه هغه ته داسي سوال کوه لکه پلار ۱
ته او ځوانانو ته داسي لکه ورونړو ته ۲ او سپینې سړو ته داسي لکه ۲
میندو ته او ځوانانو ښځو ته داسي لکه خویندو ته په پوره پاکۍ سره
۳ کُنډو ته چه په حقیقت کښ کُنډي دي عزت ورکوه ۴ لیکن که دَ ۳ ۴
یوي کُنډي زامن یا نوسي وي نو دوي دِ اوّل دا زده کړي چه دَ خپل
کور په باب دِ يې تقویٰ‌دار کړي او دَ خپل پلار او مور حق دِ ادا کړي
ځکه چه دا ښه او دَ الله دَ وړاندي پسنده ده ۵ او رښتني او بې کسه ۵

کُنده هغه ده چه په الله ئې اُمید کړي دي او شپه او ورځ په دعاؤ
۶ او په زارئ کښ مدام مشغوله ده ۶ لیکن هغه ښځه چه عیش او
۷ عشرت کوي په ژوندانه کښ مړه ده ۷ نو ته دا حکمونه وکړه چه دوي
۸ بې ملامته شي ۸ او که چرې څوک دَ خپلوانو دپاره خاص دَ خپل ټبر
په حق کښ تجویز نه کوي هغه له ایمانه منکر او له بې ایمانو ډېر بدتر
۹ دَي ۹ له کُندو دِ هغه ولیکله شي چه له شپیتو کالو کمه نه وي
۱۰ او دَ یوه میړه ښځه ۱۰ او په نیکو کارونو کښ پرې شاهدي کړې
شوي وي که دَي دَ هلکانو ساتنه کړې وي یا دَ مسافرانو نمانځنه
ئې کړې وي که دَ پاکانو پښې ئې وینځلي وي که له تنګو کړو شویو سره
۱۱ ئې مدد کړي وي که په هر نیک کار پسې شوې وي ۱۱ مګر له ځوانو
کُندو لرې ګرزه ځکه هرکله چه دَ مسیح په خلاف ناز کوي نو نکاح
۱۲ کول غواړي ۱۲ او دوي لره عدالت وي ځکه چه دوي اول ایمان رد
۱۳ کړې دَي ۱۳ او سره دَ دي سستي زده کوي او کور په کور ګرزي او
نه تنها سستي بلکه بړبړې هم وي او ګستئ چه نالایقي خبري کوي
۱۴ ۱۴ نو زه غواړم چه ځواني دِ نکاح وکړي زامن دِ وزېږوي دَ کور
۱۵ میرمني دِ کوي او مخالف ته دِ دَ بدګنځلو قابو نه ورکوي ۱۵ ځکه
۱۶ چه ځني په شیطان پسې جاروتلي دي ۱۶ که چرې مومنه (ښځه)
کُندې لرې نو مددګاري دِ ورسره کوي او په کلیسیې دِ بار نه شي
تا چه له هغو سره چه په حقیقت سره کُندې دي مدد وکړې شي
۱۷ ۱۷ هغه سپین ږیري چه په ښه شان سره ئې تدبیر کړې دي
لایق دِ دَ دوچند عزّت وګڼلي شي خاص هغه څوک چه په
۱۸ کلام او په تعلیم کښ محنت کوي ۱۸ ځکه چه کتاب وائي چه دَ
غوبل کونکي غوائه خوله مه تړه او دا چه کار کونکي دَ خپل اجرت
۱۹ لایق دَي ۱۹ په سپین ږیري باندي تهمت بې له دوو دریو شاهدانو
۲۰ مه نیوله ۲۰ هغوي چه خطا کوي دَ ټولو دَ وړاندي ئې ملامت کړه

تاچه دَ نورو ویره وشي ۲۱ زه دَ اللهِ او دَ خداوند یسوع مسیح او دَ ۲۱
غوره شویو فرښتو دَ وړاندِ په تا شاهدِي لم چه ته به دا خبري بي
له مخ‌ورئ وساتي او هیڅ کار به په طرفدارئ سره و نه کړي ۲۲ په بیړي ۲۲
سره لاس په چامه پوده او دَ نورو په خطاؤ کښِ شریک مه شه خپل ځان
پاک و ساته ۲۳ او بیا اوبه مه څښه بلکه دَ خپل هضم او دَ هغو ناجوړتیاؤ ۲۳
دَپارَ چه وار په وار دربانديِ راځي لږ څه شیره استعمال کوه ۲۴ دَ ځینو سړیو ۲۴
خطاوي ښي ښکاره دِي او عدالت ته يِ لا وړاندي بیایِي او په ځینو پسي
ځي ۲۵ هم هسي نیک کارونه ښه ښکاره دِي او هغه چه په بل شان دِي ۲۵
پټولي نه شي ✣

## شپږم باب

۱ هر څو مریونه چه تر زغ دَ لاندي دِي خپل خاوندان دِ دَ ډیر عزت لایق ۱
وګڼړي تاچه دَ الله په نامه او په تعلیم کفر و نه وایه شي ۲ او هغوي چه ۲
ایمان‌دار خاوندان لري دَ هغو سپکه دِ نه کوي دي دَپارَ چه سره ورونړه
دي بلکه زیات خدمت دِ وکړي ځکه هغوي چه په دي احسان کښِ شریکان
دِي مؤمنان او محبوبان دِي په دي خبرو تعلیم او نصیحت ورکوه
۳ که څوک بل تعلیم ورکوي او څمونږ دَ خداوند یسوع مسیح صحي کلام ۳
او هغه تعلیم چه دَ تقوی په موافق دَي نه قبلوي ۴ نو هغه سرهوا ۴
دَي او په هیڅ نه پوهیږي بلکه دَ هغو سوالونو او دَ حرفي جګړو ناجوړه
دي چه درنه کینه او جګړي او کفر او بدګمانونه پیدا کیږي ۵ او خراب ۵
ذهن والو او دَ هغو تکرارونو چه له رښتنيُ نه خالي دِي او چه دا ګڼړي
چه نفعه تقويٰ ده ٦ لیکن تقويٰ له قناعت سره ډیره نافعه ده ۷ ځکه ٦ ٧
چه مونږ دي دنیا ته هیڅ دننه راوړي نه دي ۸ ځکه توان نه لرو چه څه ۸
څیزونه بهر یوسو نو مونږ چه خوراک او پوشاک لرو په دي به کفایت
کوو ۹ او هغه کسان چه دولتمندي غواړي په آزمایښت او په لومه او ۹
په ډیرو پوچو بلوسیدونکو خواهشونو کښِ به پریوزي هغه چه سړي

۱۰ په تباهئ او په هلاکت کښې غرقوي ۱۰ څکه دَ زرو دوستي دَ ټولو
بديو بېخ دَي هغوي چه ورپسې شول له ايمانَ ګمراه شول او په
ډيرو دردونو ئې خپل ځانونه وپيل
۱۱ ۱۱ مګر ته اي مردِ الله له دي څيزونو وتښته او په صداقت
۱۲ او تقوئ او ايمان او محبت او صبر او نرم دلئ پسې شه ۱۲ دَ ايمان
په جنګ کښې ښايسته سعيه کوه او هغه ابدي ژوندون ونيسه
چه ورلره بللي شوي يې او په ښه اقرار سره دِ دَ ډيرو ګواهانو دَ وړاندي
۱۳ اقرار کړي دَي ۱۳ دَ هغه الله دَ وړاندي چه ټول څيزونه ژوندي کوي او
دَ هغه مسيح يسوع چه دَ پنطوس پيلاطس دَ وړاندي ئې په ښه اقرار
۱۴ سره شاهدي وکړه زه تا ته حکم کوم ۱۴ چه ته دغه حکم بې عيبه او
بې ملامته څمونږ دَ خداوند يسوع مسيح تر ظاهريدلو پوري وساتي -
۱۵ ۱۵ چه دي به هغه په خپل وقت ښکاره کړي چه مبارک او يواځي قادر
۱۶ او بادشاه دَ بادشاهانو او خداوند دَ خداوندانو دَي ۱۶ چه يواځي بقا لري
او په هغه نور کښې اوسي چه (څوک) ور نژدي کيدلي نه شي او چه هيڅ
سړي ليدلي نه دي او نه به وليدي شي ده لره دِ عزت او زور ابدي وي آمين
۱۷ ۱۷ هغو ته چه په اوسنئ زماني کښې دولتمند دِي حکم ورکړه چه مغرور
نه شي او په بې يقينه دولت اميد و نه لري بلکه په هغه الله چه مونږ
۱۸ ته ټول څيزونه پريوانه راکوي چه خوند ئې واخلو ۱۸ او دا چه نيکوکار او په
نيکو کارو کښې دولتمند شي او په ورکولو سخيان شي او په هم دردئ
کښې شريکان
۱۹ ۱۹ او خپلو ځانونو لره دَ راتلونکي جهان دَپاره ښه بنياد کيږدي تا چه
ژوندون مومي چه هم هغه ژوندون دَي
۲۰ ۲۰ اي طمطاوس امانت وساته او له پليتو پوچ ګوئيو او له اختلافونو دَ دروغژن علم
۲۱ وچاروزه ۲۱ چه هغوي چه دَ دغه دعوىٰ ئې وکړه دَ ايمان له جهته خطا شول
۲۲ ۲۲ فضل دِ له تاسو سره وي - آمين *

# دویم خط دَ پولس رسول طمطاؤس ته

## اوّل باب

۱ آ پولس رسول دَ مسیح یسوعٔ په ارادي دَ الله په موافق دَ هغې وعدې
۲ دَ ژوندانه چه په مسیح یسوعٔ کښ ده ۲ طمطاؤس محبوب فرزند ته دِ
فضل او رحم او سلامتي له الله پلارَ او خمونږ له خداوند مسیح
یسوعٔ نه

۳ ۳ زه دَ هغه الله شکر کوم چه زه ئي په پاک تمیز سره له
خپلو نیکونو عبادت کوم چه ستا په باب په خپلو زاریو کښ څرنګ
۴ بي ناغې ذکر کوم ۴ او شپه او ورځ چه ستا اوښکې په یاد کړم ستا
۵ دَ ملاقات مشتاق ئیم تاچه له خوشحالۍ ډک شم ۵ چه زه هغه بي ریا
ایمان چه په تاکښ دي په یاد راوړم هغه چه ستا په نیالوبي او
ستا په موراونکۍ کښ اوسیده او خما یقین دَي چه په تاکښ هم شته
۶ ۶ له دې سببَ دریاد کوم چه ته دَ الله هغه بخښنه چه تا ته خما
۷ له لاس کیښودلو نه درکړې شوه روښانه ئي کړه ۷ ځکه چه الله مونږ
ته نه وسواسي روح بلکه دَ قدرت او دَ محبّت او دَ هوښیارۍ راکړې
۸ دي ۸ نو خمونږ دَ خداوند له شاهدۍ نه مه شرمیږه او نه له ما نه
چه دَده بنده یم بلکه دَ الله دَ قدرت په موافق دَ انجیل دَیار زحمتونه
۹ سره زغمه ۹ هغه چه مونږ ئي خلاص کړو او په پاکې بلنې سره ئي
وبللو نه خمونږ دَ کارونو په موافق بلکه دَ خپل قصد په موافق او په
هغه فضل سره چه په مسیح یسوعٔ کښ وړاندي له قدیمو وقتونو مونږ
۱۰ ته راکړې شه ۱۰ او اوس خمونږ دَ خلاصونکي مسیح یسوعٔ په ظهور ښکاره
کړې شه هغه چه مرګ ئي باطل کړ او ژوندون او بقا ئي په انجیل
۱۱ روښانه کړي دِي ۱۱ هغه چه دَده دَیارَ زه واعظ او رسول او دَ غیر

۱۲ تومونو دَپارَ مُعلم مقرر شوي یم ۱۲ اوله دي سببَ درد هم زغمم لیکن زه نه
شرمیږم دي دَپارَ چه زه پوهیږم چه ما په چا ایمان راوړي دَي اوخما یقین
دَي چه هغه قادر دَي چه خما دَا امانت به تر هغي ورځي پوري وساتي
۱۳ ۱۳ هغه نقشه دَ صحي کلام چه له ما نه دِ واوریده په ایمان اوپه محبت
۱۴ سره چه په مسیح یسوع کښ ده ونیسه ۱۴ دغه ښه امانت په وسیلي
دَ روح القدس چه په مونږ کښ اوسي وئي سانه
۱۵ ۱۵ ته په دي پوهیږي چه ټول خلق چه په آسیي کښ دِي رانه وجادو تل
۱۶ چه فوګلس او هرموګنس له هغو دِي ۱۶ خداوند دِ دَ اُنسیفرس په کور باندِ
رحم وکړي ځکه چه دغه ما ته ډیر ځله تازګي راکړه او خما په زنځیرونو
۱۷ نه شرمیده ۱۷ بلکه چه په روم کښ وه زه ئې په ډیر کوشش سره ولټولم
۱۸ او وئې موندلم ۱۸ خداوند دِ ده ته دا ورکړي چه هغه ورځ له خداوند نه
رحم مومي او هرڅومره چه ده په افسس کښ خما خدمتونه کړي دِي ته
ئې ښه پیژني ٭

# دویم باب

۱ ۱ نو اي خما فرزنده ته په هغه فضل چه په مسیح یسوع کښ دَي قوي اوسه
۲ ۲ او هرڅه چه تا دَ ډیرو شاهدانو دَ وړاندي له ما نه اوریدلي دِي هغه
امانتدارو سړو ته وسپاره چه دوي توان لري چه نورو ته ئې ورزده
۳ کړي ۳ نو ته دَ یسوع مسیح دَ ښه سپاهي په شان ربخونه وزغمه
۴ ۴ هغه څوک چه سپاهیګري کوي نوخپل ځان دَ دنیا په معاملو کښ
۵ نه نښلوي تاچه هغه ئې خوښ کړي چه دي ئې سپاهي کړي دَي ۵ او
که چري څوک کُشتي کوي نو هیڅکله تاج نه مومي تر هغه پوري چه په
۶ قاعدي سره موافقه کُشتي ونه کړي ۶ دهقان ته چه خواري کوي بایده
۷ دِي چه اول له میوو نه څه حاصل کړي ۷ هغه چه زه ئې وایم فکر
۸ په کښ وکړه چه خداوند به تا ته په ټولو خبرو پوهه درکړي ۸ یسوع مسیح
په یاد کړه له اولاده دَ داؤده پورته کړي شوي له مړو نه خما دَ انجیل په

موافق ۹ چه په دغه کښ زه دَ بدکار په شان تر زنځیرونو پوري ۹
زغمم لیکن کلام دَ الله بند شوي نه دي ۱۰ دي دَپاره دَ غوره شوو ۱۰
په وسیلي په هرڅه صبر کوم تاچه دوي هم هغه نجات ته چه په مسیح
یسوع کښ دَي ابدي جلال حاصل کړي
۱۱ دا کلام برحق دَي ۱۱

که مونږ له ده سره شُو ممات    نو هم به له ده سره شُو حیات
۱۲ که مونږ له ده سره شُو صابران    نو هم له ده سره به شُو بادشاهان ۱۲
او که مونږ له ده وکړو انکار    نو دي به هم له مونږ وکړي انکار
۱۳ که مونږ شُو (له ده) نا امینان    نو دي امین پاتي انکار کړي نه شي له خپل ځان ۱۳

۱۴ دا خبري وریادي کړه او دَ خداوند په حضور تل تر تله له دوي ۱۴
سره شاهدي ورکوه چه دا لفظونه تکرار نه کړي چه دغه هیڅ فائده
نه لري مگر آوریدونکي اړوي ۱۵ کوشش کوه چه ته خپل ځان الله لره ۱۵
مقبول ودروي هسي کاریگر چه نه شرمنده کیږي چه دَ رښتیني کلام
په برابري سره ووېشي ۱۶ مگر له پلیتو او له پوچو خبرو په ډډه ۱۶
شه ځکه چه دوي به په زیاتي فاسقي کښ ترقي وکړي ۱۷ او دَ هغو کلام ۱۷
دَ خوري په شان وخوري له هغو نه هومیناؤس او فلیطس دي چه
په حق دَ رښتیا کښ وار خطا شوي دي ۱۸ او په دي قایل دي چه ۱۸
قیامت وس تیر شوي دَي او دَ ځنو ایمان اړوي ۱۹ مگر مضبوط ۱۹
بنیاد د الله قایم او هغه لره دا مُهر دَي چه خداوند هغه پیژني چه
دَده دي او دا چه هر یو چه دَ مسیح نوم اخلي له ناراستي ډِ په ډډه
شي ۲۰ لیکن په لوي کور کښ نه تش دَ سرو او دَ سپینو زرو لوښي ۲۰
دي بلکه دَ لرګو او دَ خاورو هم شته دي او ځني دَ عزت دَپاره او ځني
دَ بي عزتي دَپاره دي ۲۱ نو که څوک خپل ځان له دغو نه پاک کړي نو هغه ۲۱
به دَ عزت لوښي وي مقدس او دَ خداوند خوښ او دَ هر نیک کار دَپاره
تیار شوي دي ۲۲ دَ ځواني والي له شهوتونو وتښته او له هغو ټولو ۲۲

سره چه په پاک زړه دَ خداوند نوم بولي په صداقت او په ایمان او په محبت
۲۳ او په صلحې پسي زغله ۲۳ او له خوشو ناتربیتو سوالونو انکار وکړه ځکه چه
۲۴ ته پوهیږي چه دغه تکرارونه پیدا کوي ۲۴ لیکن بایده نه دِي چه غلام
دَ خداوند تکرار کوي بلکه په ټولو دِ نرمدله وِي او تعلیم ورکولو ته تیار او
۲۵ زغمونکي دَ دردونو ۲۵ او په حلیمۍ سره دَ مخالفانو پوهونکي چه کُندي الله
۲۶ دوي ته دَ رښتني پیژاندلو دَپاره توبه ورښنِي ۲۶ او له لومي دَ ابلیس چه دَده
دَ ارادي په موافق تړ دَ لاندي ژوندي نیولي شوي دِي په پرهیزکاريْ سره
راستنه شِي ❖

## دریم باب

۱ ۱ او په دي خبر بشه چه په آخرو ورځو کښ به هیبتناک وقتونه راشي
۲ ۲ چه سړِي به خودپسنده په زور مَیَنْ لالچي وهونکي کبرجن او کفر ویونکي
۳ دَ پلار او دَ مور نافرمان ناشاکره ناپاک ۳ بي الفت بي وعدي چغلخوارد
۴ بي پرهیزه بي نرمۍ په نیکۍ ناسینه کونکي ۴ خائنان شوخان سرهوا په لذتونو
۵ له الله نه زیات مَیَنْ ۵ چه دَ تقوی صورت لرِي مگر دَده له قدرت نه
۶ منکره دِي نو له داسي خلقو مخ وگرزوه ۶ ځکه چه په دوي کښ هغوي دِي
چه په کورونو کښ ننوزِي او کمعقلي ښځي په بند نیسِي چه په خطاوُ بار
۷ شوِي په رنگارنگ شهوتونو کښ بیولي شِي ۷ او مدام تعلیم مومي او هیڅکله
۸ و معرفت دَ رښتنیۍ ته نه رسیږِي ۸ او لکه چه یاناس او یمبریس له
موسیٰ نه مخالفت وکړ هم هسي دوي له رښتیا نه مخالفت کوِي دَ خراب
۹ عقل او دَ ایمان په باب مردود دِي ۹ لیکن دوي به زیاته ترقي و نه کړِي
ځکه چه دَدوي ناپوهي به په ټولو ظاهره شِي لکه چه دَدوي ناپوهي هم
۱۰ وشوه ۱۰ لیکن تا ځما دَ تعلیم او دَ پیشوائۍ او دَ قصد او دَ ایمان او
۱۱ دَ اوږده زغم او دَ محبت او دَ صبر ۱۱ او دَ ربړونو او دَ دردونو چه څرنگ
ځیزونه په انطاکیه او په ایکوني او په لستري کښ په ما واقع شول
پیروي وکړه چه ما څرنگ ربړونه وزغمل او خداوند له هغو ټولو خلاص کړم

۱۲ بلکه هغه ټول چه په یسوع مسیح له تقویٰ سره ژوند تیرول ۱۲
غواړي ربړ به بیا مومي ۱۳ مګر بدان او مکاران سړي چه غولونکي ۱۳
او غولیدلي شي زیاته ترقي به وکړي ۱۴ لیکن ته په هغو څیزونو ۱۴
کښې چه زده کړي او پېژاندلي دِ دِي تهینګ اوسه چه ته پوهیږي
چه له چا نه دِ زده کړي دِي ۱۵ او دا چه ته له هلکوالي نه په پاکو نوشتو ۱۵
پوهیږي چه تا ته په مسیح یسوع کښې دَ ایمان په وسیلې دَ نجات دَپارَ داناني
درکولي شي ۱۶ ټول کتابونه په الهام سره دِي او دَ تعلیم او دَ ملامتیا او دَ ۱۶
هدایت او دَ تربیت دَپارَ چه په صداقت کښې وِي فائده مند دِي ۱۷ تا چه ۱۷
مردِ الله کامل او دَ هر نیک کار دَپارَ پوره وِي ؞

## څلورم باب

۱ نوزه تاکید درکوم دَ الله او دَ خداوند یسوع مسیح دَ وړاندِ هغه چه په ۱
خپل ظهور او په خپلي بادشاهي کښې به دَ ژوندیو او دَ مړیو عدالت وکړي
۲ چه په کلام وعظ کوه وقت ناوقت ودریږه ملامته کوه ترټنه کوه نصیحت ۲
کوه په اوږده زغم او په تعلیم ورکولو سره ۳ څکه چه هغه وقت به راشي ۳
چه دَ صحي تعلیم زغم به و نه کړي بلکه دَ غوږونو په خارښتولو سره به
دَخپلو خواهشونو په موافق دَخپلو څانونو دَپارَ استاذان جمع کړي ۴ او ۴
غوږونه به له رښتنئ وګرزوي او دَ قصور په لوري به وجاروزي ۵ لیکن ۵
ته په ټولو خبرو کښې پرهیزګار اوسه رنځ زغمه دَ زیري ورکونکي کار په څای
راوړه خدمت خپل پوره کوه ۶ څکه چه اوس څما وینې توئیږي او څما ۶
دَکوچیدلو وقت رارسیدلي دَي ۷ ما په ښې سعي سره سعیه کړي دَه ۷
ایمان مِ ساتلي دَي ۸ اخر تاج دَ صداقت څما دَپارَ ایښې شوي دَي چه دَغه ۸
به خداوند هغه عادل صادق په هغي ورځي ما ته راکړي او نه تش ما ته
بلکه هغو ټولو ته هم چه دَده په ظهور مینه کوي
۹ کوشش کوه چه ما ته زر راشي ۱۰ څکه چه دیماس دغه حاضره ۹ ۱۰
زمانه خوښه کړه زه ئ پرېښوم او تسالونیکي ته لاړ شه او کریسکیس

۱۱ کالِتیبي ته او طیطس دَلماتیبي ته ۱۱ یواځي لوقا له ما سره دي مرقس و
نیسه له خپل ځان سره يُ راوله ځکه چه دي دَ خادمئ دَپارَ فائده مند
۱۲ ۱۳ دي ۱۲ ما تخیکس وافسس ته واستاوه ۱۳ هغه چوغه چه په طرواس کښ
مِ دَ کاپس څخه پرِښبي وه ستا دَ راتلو په وقت کښ درسره راوړه او
۱۴ کتابونه خاص هغه دَ څرمني ورقي ۱۴ سکندر تمبار ډیري بدي راسره
۱۵ وکړي خداوند دِ دَده دَ کارونو په موافق ده ته بدله ورکړِي ۱۵ له هغه
نه ته هم خبردار اوسه ځکه چه ده څمونږ له خبرو ډیر مخالفت وکړ
۱۶ ۱۶ څما په ورنبي عذر کښ هیڅوک راسره نه وُه بلکه ټولو پرِښبودلم
۱۷ هسي نه چه په دوي وګنړلي شي ۱۷ مګر خداوند راسره ولاړ وُه او
زه يُ قوي کړم تاچه څما په وسیلي په وعظ منادي وکړي شي او ټول
۱۸ غیر قومونه يُ واوري او زه دَ زمري له خولي خلاص شولم ۱۸ خداوند
به مِ له هرِ بده کاره خلاص کړي او په خپلي آسماني بادشاهي کښ
به بخات راکړي ده لره دِ ترابدالآباده تمجید وِي آمین۰
۱۹ ۲۰ ۱۹ پرسکلا او عاقلا او دَ انیسیفرس کور ته سلام وایه ۲۰ اراستس
په قرنت کښ پاتي شه ترِوفیمس مِ په ملیطس کښ رنځور پرِښبود
۲۱ ۲۱ بیړه کوه چه ته له ژمي وړاندي راشي او بولس او پُودِیس اولینس
او قلوریه او ټول ورونړه تا ته سلام وایي
۲۲ ۲۲ هغه خداوند دِ ستا له روح سره وِي فضل دِ له تا سره
وِي آمین *

# خط دَ پولس رسول و طیطس ته

## اول باب

۱ پولُس غلام دَ الله او رسول دَ یسوع مسیح په موافق دَ ایمان دَ ۱
غوره کړو شویو دَ الله او دَ هغه حق په معرفت چه دَ تقویٰ په موافق
دي ۲ په امید دَ هغه ابدي ژوندون چه دَ دغه وعده هغه الله چه ۲
دروغ ویلي نه شي پخوا له ازلي زمانو نه وکړه ۳ او په حپلو خاصو وقتونو کښ ۳
ئي خپل کلام ظاهر کړ په هغه وعظ سره چه ځمونږ دَ خلاصونکي الله دَ
حکم په موافق زه پرِ سپارلي شوي وم ۴ طیطس ته چه دَ عام ایمان ۴
په موافق حقیقي فرزند دي فضل او سلامتي دِ دَ الله پلار او ځمونږ له
خلاصونکي حداوند یسوع مسیح نه وي
۵ ما ځکه ته په کریت کښ پرېښوي تا چه نیمګړي څیزونه په ترتیب ۵
سره درست کړي او ښهر په ښهر سپین‌ږیري مقرر کړي لکه چه تا ته مِ
حکم وکړ ۶ که چړي څوک بي‌ملامتيٰ او دَ یوي ښځي څښتن وي چه ایماندار ۶
فرزندان لري چه دَ فاسقيٰ او دَ یاغي‌توب په تهمت کښ نه وي ۷ ځکه چه ۷
بایده دي چه اُسقوف بي ملامتي وي لکه ناظر دَ الله نه خود غرضي نه تند
مزاجه نه دَ شرابو مست نه وهونکي نه حریص دَ ناروا ګټي ۸ بلکه دَ ۸
مسافرانو دوست په نیکيِ مَیَنْ - دانا - صادق پاک پرهیزګار ۹ ټینګ نیونکي ۹
دَ هغه امین کلام چه موافق دَ تعلیم دَي تا چه توان لري چه په صحیح تعلیم
سره نصیحت کړي او مخالفان پړه کړي
۱۰ ځکه چه ډیر سرِي دِي یاغیان خوشي ویونکي چه ذهنونه غلوي خاص ۱۰
له مختونانو چه دَ دغوخولي بندول لازم دي ۱۱ چه تولي خیلخانيٰ اړوي چه دَ ۱۱
ناروا نفعي دَپارَ نامناسبي خبري ورزده کړي ۱۲ یوه له دوي نه چه خاص ۱۲
نبي ئي وه وویل چه کریتیان همیشه دروغژن او بد درندګان مټبه

١٣ کينږه ور دِي ١٣ دا شاهدِي رښتيا ده په دي سبب ئي سخت ملامتَ
١٤ کړه تاچه دوي په ايمان کښې روغ شِي ١٤ او چه دَ يهوديانو قصو ته
او دَ داسي سړيو حکمونو ته چه له رښتيني گرزيدونکي دِي متوجه نه شِي-
١٥ ١٥ پاکانو ته هر څه پاک دِي ليکن پليتانو او بي ايمانو ته د هيڅ څيز
١٦ پاک نشته بلکه دَ دغو ذهن او تميز پليت شوِي دِي ١٦ دوي اقرار کوِي چه
سونږ الله پيژنو مگر په عملونو سره دَده انکار کوِي چه دوي نجس او نافرمان
او دَ هر نيک عمل دَپارَ رد شوِي دِي ❊

# دويم باب

١ ٢ ١ مگر ته هغه خبري کوه چه دَ صحي تعليم لايقي وِي ٢ چه زاړه سړِي
پرهيزگار معتبر هوښمند روغ جوړ په ايمان په محبت په صبر کښې-
٣ ٣ په دي شان سره دِ زړي ښځي هم داسي په خصلت کښې دَ پاکي لايقي
شِي نه چغلي خوري نه دَ ډيرو شرابو وينځي جوړي شوِي بلکه دَ ښه تعليم
٤ ښوونکي دِ وِي ٤ چه ځوانو ښځو ته ادب وښيي چه په خپلو ميړونو
٥ مينه داري شِي او په فرزندانو مينه کوِي ٥ او هوښمندي پاک لمني
په کور کښې کارکونکي نيکي دَ خپلو ميړونو تابعداري تاچه دَ الله په کلام
٦ کفر وويلې نه شِي ٦ په دي شان ځوانانو ته هم نصيحت کوه چه هوښمند
٧ اوسِي ٧ او په ټولو خبرو کښې خپل ځان دَ نيکو کارونو نمونه ښکاره کړِي
٨ په هغه تعليم کښې خالصي او معتبرِي صحي کلام او بي ملامته ٨ تا چه
مخالف ويونکي خجل شِي چه څمونږ په باب دَ هيڅ سپک ويلو سبب و نه
٩ لرِي ٩ مريونو ته (نصيحت وکړه) چه دَ خپلو خاوندانو تابعدارِي دِ کوِي او په
ټولو خبرو کښې دِ راضِي لري نه ځواب ورکونکي نه خيانت کونکي بلکه
ټوله نيکه امانداري دِ ظاهره کړِي تاچه څمونږ دَ خلاصونکي الله
١١ تعليم په ټولو خبرو کښې آراسته کړِي ١١ ځکه چه فضل دَ الله چه
١٢ ټولِ انسان ته نجات ورکونکي دَي ظاهر شه ١٢ مونږ ته تربيت راکوِي
چه له بي دينو او له دنياوِي شهوتونو انکار وکړو په دي حاضر عالم کښې

۱۳ په هوښمندئ او په صداقت او په تقویٰ سره ژوند وکړو ۱۳ انتظار کوونکي
دَ هغه مبارک امید او دَ ظهور دَ جلال دَ لوي الله او ښمونږ دَ خلاصونکي
۱۴ یسوع مسیح ۱۴ هغه چه خپل ځان ئي ښمونږ دَپارَ ورکړ تا چه مونږ له
ټولي بي شرعي په فدیي سره خلاص کاندي او دَ خپل ځان دَپارَ یو خاص
امت غیرتناک په ښایسته عملونو کښ پاک کړي
۱۵ ۱۵ دا خبري وایه او نصیحت کوه او په ټول تاکید سره ملامت کوه
هیڅوک دِ تا سپک نه کړي ❊

# دریم باب

۱ ۱ هغوي ته وریاد کړه چه دَ حاکمانو او دَ اختیاروالو فرمانبردار او
۲ تابعدار ښي دَ هر نیک عمل دَپارَ دِ تیار ښي ۲ هیچا ته دِ بنګنځل نه کوي
بي جنګیدلو دِ ښي حلیمان او له ټول انسان سره دِ عاجزي کوي-
۳ ۳ ځکه چه مونږ هم وړاندي نادانَ نافرمانَ ګمراه او دَ رنګارنګ شهوتونو
او لذتونو غلامان وُو په شر او په حسد کښ ګذران کوونکي او
۴ کینه وړي او یو له بل سره کینه کوونکي ۴ لیکن هرکله چه ښمونږ
۵ دَ خلاصونکي الله مهرباني او شفقت ظاهر شه ۵ نه له عملونو په
صداقت کښ چه مونږ وکړل بلکه دَ خپل رحم په موافق ئي مونږ خلاص
کړي یو دَ بیا زیږدلو په غسل او دَ روح القدس دَ نوي والي په وسیلي-
۶ ۶ چه ده هغه ښمونږ دَ خلاصونکي یسوع مسیح په وسیلي سره په مونږ
۷ باندي ئي فریوانه نوي کړ ۷ تا چه مونږ دَده په فضل صادقان ګڼلي شوي
۸ دَ ابدي ژوندانه دَ امید په موافق وارثان شو ۸ دا کلام امین دَي او دَ
دي څیزونو په باب غواړم چه ته ئي وار په وار ووایه چه هغوي چه
په الله ئي ایمان راوړي دَي کوشش وکړي چه په نیکو عملونو کښ تدبیر
۹ وکړي دا څیزونه دَ انسان دَپارَ نیک او فائده مند دِي ۹ لیکن له خوشیو
سوالونو او له نسب‌نامو او له جګړو او له شریعتي مقدمو په ډډه شه
۱۰ ۱۰ ځکه چه دا بي‌فائدي او باطل دِي ۱۱ له بدعتي سړي نه پس له اول او

دويم نصيحت ورکولو نه انکار کوه ځکه چه ته پوهيږي چه داسي کس
اړولي شوي دي او خطا کوي او خپل ځان پر کوي
۱۲ ۱۲ هرکله چه زه ارطماس يا تخيکس درواستوم نو زر شه چه
نه ما ته په نيکو پولس کښ راشي ځکه چه ما نيت کړي دَي چه ژمي
۱۳ هلته تير کړم ۱۳ زيناس نوراتي او ابلوس به بيړي سره روان کړه
تاچه دَ هيڅ څيز محتاج نه شي ۱۴ او ځمونږ (خلق) دِ هم زده کړي چه
دَ ضروري حاجتونو دَپارَ په نيکو عملونو کښ دِ تدبير وکړي تا چه
بي ميوي نه وي
۱۵ ۱۵ هغوي ټول چه له ما سره دِي تا ته سلام واېي هغو ته چه
په ايمان کښ له مونږ سره مينه لري سلام وايه
له تاسو ټولو سره دِ فضل وي - آمين ٭

# خط دَ پولس رسول و فليمون ته

۱ پولُس قيدِي دَ مسيح يسوع او تيموطاؤس ورور وفليمون عزيز ۱
او همكار خموږ ته ۲ او عزيزي افيي خور ته او ارخپس خموږ ۲
همسپاهِ ته او هغي كليسيي ته چه ستا كره ده ۳ فضل او سلامتي ۳
دِ خموږ دَ پلار الله اوِ له خداوند يسوع مسيح وِي
۴ زه هميشه دَ خپل الله شكر كوم او په خپلو دُعاؤ كښ ۴
دِ ذكر كوم ۵ چه ستا محبّت او ستا ايمان چه په خداوند يسوع او ۵
په ټولو پاكانو ئې لري اورم ۶ تاچه ستا دَ ايمان شراكت دَ ټولي نيكئِ ۶
په پيژندلو كښ كارساز شِي هغه چه دَ مسيح دَپارَ په تاسو كښ دَي
۷ ځكه چه ما ستا دَ محبّت په سبب ډيره خوشحالِي او تسلِي لرله ځكه ۷
چه ستا له جهتَ اي ورروه دَ پاكانو كُلمو تازگِي موندلي دَه
۸ دي دَپارَ زه په مسيح ډير زړورتوب لرم چه په تا باندي دَ ۸
هغه څه چه لايق دِي حكم وكړم ۹ ليكن دَ محبّت په سبب زيات ۹
سوال كوم ځكه چه زه دغه سړي يم لكه سپين ږيري پولُس او اوس
دَ مسيح يسوع قيدِي هم يم ۱۰ نو زه تا ته دَ خپل فرزند اُنيسمس په ۱۰
باب چه په قيدونو كښ مِ وزيږاوه سوال كوم ۱۱ هغه چه وړاندي ۱۱
تا لره بي‌فايدي وه ليكن اوس ستا او خما دَپارَ ښه فائده مند شه
۱۲ هغه مِ درواستاوه اوس هغه چه خما كُلمي دي قبول ئې كړه ۱۳ او ۱۲ ۱۳
خما نيت وه چه هغه خپل خان څخه لرم چه ستا په ځاي له ما سره
دَ انجيل په زنځيرونو كښ خدمت وكړِي ۱۴ ليكن بي له صلاح ستا مِ ۱۴
اراده نه وَه چه څه وكړم تاچه ستا احسان په ضرورت سره نه
بلكه په خوښئِ سره وِي ۱۵ چه هغه گُندي دَدي دَپارَ له تا نه يو ۱۵
ساعت جدا شه چه بيا تل تر تله له تا سره وِي ۱۶ ليكن بيا دَ غلام ۱۶

پہ ښان نہ بلکہ چہ لہ غلام نہ بهتر وِي دَ محبوب ورور پہ ښان چہ دا
خاص ځما دَپارَ دَي مګر څومره زيات بہ تا لرہ هم پہ جسم کښں هم پہ
١٧ خداوند کښں وِي ١٧ نو کہ تہ مِ خپل شريک ګنڼي پس تہ شغہ داسي
١٨ قبول کړہ لکہ زہ ١٨ او کہ ئي لہ تا سرہ څہ ناحقي کړي وِي يا دِ
١٩ پوروړي وِي نو هغہ ځما پہ نوم وليکہ ١٩ ما پولس پہ خپل لاس سره
وليکل چہ زہ بہ ئي پہ خپلہ اداکړم تا چہ تا تہ وِ نہ وايم چہ تہ
٢٠ پہ خپل ځان هم ځما پوروړي يي ٢٠ هو اي ورورہ پہ خداوند کښں
٢١ مِ ښادمان کړہ او ځما ګلمي پہ يسوع کښں تازہ کړہ ٢١ زہ تا تہ ستا
دَ تابعداري پہ يقين درليکم چہ تہ بہ لہ دغہ نہ چہ زہ وايم زيات
٢٢ وکړي ٢٢ او بي لہ دي ځاي هم ځما دَپارَ تيار کړہ ځکہ چہ زہ اميد لرم
چہ ستاسو دَ دُعاؤ پہ وسيلي بہ تاسو تہ درکړي شم
٢٣ ٢٣ ايفراس چہ دَ مسيح يسوع دَپارَ لہ ما سره بندي دي۔
٢٤ ٢٤ او مرقس او ارسطرخس او ديماس او لوقا چہ ځما همکاران دِي
تا تہ سلام وايي
٢٥ ٢٥ ځموږ دَ خداوند يسوع فضل دِ لہ تا سره وِي۔ آمين ❋

# خط دَ پولس رسول وعبرانیانو ته

## اول باب

١ الله چه دهٔ له قدیمه دَ نبیانو په وسیلي له پلرونو سره په طور طور
٢ او په رنګارنګ خبري وکړي په دي آخرو ورځو کښں ئي له مونږ سره
په خوي کښں خبري وکړي چه ده په ټولو خبرونو وارث مقرّر کړي دَي
٣ اوچه دَده په وسیلي ئي عالمونه پیدا کړل همغه چه برېښنا دَده دَجلال
او نقش دَده دَ ذات شه او ټول څیزونه دَخپل قدرت په خبري
سنبالوِي چه څمونږ خطاوي ئي پاکي کړي نو په ښي لاس دَجنابِ اعلیٰ
٤ کښیناست او له فرښتو نه دومره قدر بزرګ شه لکه چه څومره له
٥ هغوي نه دَ ډېر لوي نوم وارث شوي دَي ځکه چه ده له فرښتو نه
هم کله چا ته ویلي دِي چه

تهٔ م زوي يي
نن ورځ مِ و زېږولي
او بیا دا چه زه به دَ هغه پلار شم
او هغه به مِ زوي وِي

٦ او بیا چه ئي ورښي زېږېدلي په دنیا کښں راننیوست نو وئي ويل چه
ټولي فرښتي دَ الله دِ سجده ورته وکړي
٧ او دَ فرښتو په حق کښں دا واِيي چه
دي خپلي فرښتي ارواحونه
اوخپل خادمان دَ اور لنبي جوړوِي
٨ لیکن دَ زوي په باب کښں واِيي چه
اي الله ستا تخت ابدالآباد دَي
او ستا دَ بادشاهي همسا دَ راستيِ همسا ده

٩ تا له راستیٔ سره مینهٔ او له بي‌شرعي سره کینه کړي ده
دي دپارهٔ الله ستا الله ته دَ خوشحالي په تیلو له خپلو ملګرو
زیات مسحه کړي یي

١٠ او دا چه

اي خداونده تا په ابتدا کښ دَ زمکي بنیاد ایښي دي
او آسمانونه ستا دَ لاسونو کار دَي
١١ دغه به نیست شي لیکن ته به باقي یي
او دغه ټول به دَ جامي په شان زاړه شي
١٢ او دَ څادر په دود به یٔ سره ونغاړي
او دغه به دَ جامي په دود بدل شي
مګر ته هم هغه یي
او کالونه ستا به تیر نه شي
١٣ او له فرښتو نه یٔ کومي یوي ته کله ویلي دي چه ته څما په
ښي لاس کښینه
څو چه زه ستا ټول دښمنان ستا تر پښو لاندي تکیه کړم
١٤ ګنړه هغه ټول خادمان ارواحونه نه دي څه ؟ چه دَ راتلونکو دَ خدمت
دپارهٔ استولي شوي دي چه دَ نجات وارثان شي ✣

# دویم باب

١ له دیٔ سببَ بایده دي چه مونږ په هغو خبرو چه آوریدلي مو دي
٢ زیات متوجه شو هسي نه چه ورنه تیر شو ٢ څکه اګرکه هغه
کلام چه دَ فرښتو په وسیلي ویلي شه ثابت وه او هري تعدیٰ
٣ او هري نافرماني حق اجر بیاموند ٣ نو مونږ به څرنګ خلاص شو
که له داسي لوي نجات نه بي‌پروا شو چه له ابتدا نه دَ خداوند په
وسیلي ویلي شول او بیا له آوریدونکو مونږ ته ثابت کړي شول -
٤ او له هغو سره الله په نښو او په عجائباتو او په رنګارنګ قدرتونو

او دَ روح القدس په ويشلو دَ خپلې مرضئ په موافق شاهدي ورکوِ
۵ ځکه چه دَ راتلونکي جهان چه مونږ ئې ذکر کوو دَ فرښتو ۵
تابعدار کړي نه دي ۶ ليکن چا په کوم ځاي کښ ګواهي کړي ده چه ۶

سړي څه دَي چه ته ئې په ياد ولري
يا دَ سړي ځوي چه ته ئې پوښتنه وکړي
۷ تا هغه لږ څه له فرښتو کم کړي دي ۷
تا په جلال او په عزّت تاجدار کړي دَي
او دَ خپلو لاسونو په کارونو دِ مقرّر کړي دَي
۸ او تا ټول دَده تر پښو لاندي تابعدار کړي دِي ۸

او چه ټول څيزونه ئې دَده تابع کړل نو ده هيڅ څيز ناتابع دَده پرې نه ښود
مګر لا تر اوسه پوري مونږ نه وينو چه ټول دَده تابع کړي شوي دِي
۹ مګر هغه څوک وينو چه لږ څه له فرښتو کم کړي شوي وه يعني ۹
يسوع چه په وسيلې دَ درد زغملو دَ مرګ تاجدار کړي شوي په جلال
او په عزّت سره تا چه دَ الله په فضل سره دَ ټولو دَپارَ دَ مرګ
مزه وڅکي ۱۰ ځکه چه هغه چا لره مناسب وه چه هر څه له ده نه ۱۰
او دَده په وسيلې هست دِي چه ډير زامن جلال ته راولي چه دَ
دوي دَ بچات سردار په دردونو کامل کړي ۱۱ ځکه چه پاکونکَي او پاک ۱۱
کړي شوِي ټول له يوه دِي نو په دي سبب دَدوي په ورور بللو نه
شرميږي ۱۲ او وائي چه ۱۲

زه به ستا دَ نوم زيري خپلو ورونړو ته ورکړم
او دَ کليسيي په مينځ به ستا مدحه وغږوم

۱۳ او بيا دا چه زه به په ده باندي توکل وکړم او بيا دا ګوره چه زه او ۱۳
هغه هلکان چه الله ما ته راکړي دِي ۱۴ نو چه هلکان په وينې ۱۴
او په غوښې کښ سره شريکان دِي نو دي په خپله هم هسي په
هغو دواړو کښ شريک شه تا چه دَ مرګ په وسيلې هغه چه دَ

١٥ مرګ زور يُ لاره يعني ابليس برباد کړي ١٥ او هغوي چه ټول عمر دَ
١٦ مرګ په غلامي کښ ګرفتار وُو خلاص کړي ١٦ او دي په يقين سره دَ
١٧ فرښتو ذات نه نيسِي بلکه دَ ابراهيم نسل نيسِي ١٧ له دي سببَ چه دا
بايده وُه چه دي په هر کار کښ دَ خپلو ورونړو سره مشابه کړي شِي
تا چه دَ الله په څيزونو کښ رحيم او امانتدار سردار کوهن شِي تا چه
١٨ دَ اُمت دَ خطاؤ کفاره قبوله شِي ١٨ او چه په هغه کښ دي پخپله ازمايلي
شوي ودردېده نو ځکه له ازماينښت موندونکو سره مدد کولي شِي ❊

## دريم باب

١ ١ له دي سببَ ايّ پاکو ورونړو چه دَ آسمان په بلنه کښ شريکان يُ
٢ خمونږ دَ اقرار په رسول او سردار کوهن يعني په يسوع غور وکړئ ٢ چه
دي هغه لره چه دي لِيُ مقرّر کړ امانتدار وه لکه چه موسیٰ دَده په ټول
٣ کور وه ٣ ځکه چه دي له موسیٰ نه دومره قدر زيات لايق دَ جلال
ګڼلي شوي دي لکه څومره چه دَ کور تيارونکي له کوره زيات عزّت لري
٤ ٤ ځکه چه هر کور دَ چا په لاس تيارېږي ليکن هغه چه دَ ټولو تيارونکي
٥ دي الله دي ٥ او موسیٰ خو په خپل ټول کور دَ خادم په شان امانتدار
٦ وه تا چه په هغو خبرو چه به کيدلو وي شاهدِي وِلي ٦ ليکن مسيح لکه زوي
په خپل کور باندي او دَده کور مونږ يُو که چري مونږ دَ خپل همّت او دَ
٧ اميد فخر تر آخره پوري ثابت ونيسو ٧ دي دَپارَ لکه چه روح القدس
وايِي چه

که چري نن ورځ دَده آواز واوريُ
٨ نو خپل زړونه مه سختويِ ٨ لکه په خپه کولو کښ
دَ ازماينښت دَ ورځي په موافق په صحرا کښ وشول
٩ ٩ چه هلته زه ستاسي پلرونو په آزماينښت سره وازمايلم
او څلوېښت کاله يُ څما کارونه ليدل
١٠ له دغه سببَ دي پيړيِ نه په قهر شولم

او و یم ویل چه دوي مدام په زړه کښې گمراه کیږي
لیکن دوي لاري څما و نه پیژاندلي
۱۱ نو ما په خپل قهر کښې سوگند وخوړ ۱۱
چه دوي به څما په آرام کښې داخل نه شي
۱۲ احتیاط کوئ اي ورونړو هسې نه چه له تاسي نه په چا کښې ۱۲
دَ بي‌ایمانئ بد زړه وي چه له ژوندي الله نه بیل ودریږي ۱۳ بلکه یو بل ۱۳
ته هره ورځ نصیحت کوئ تر هغه پوري چه نن ورځ ویلي شي تا چه
له تاسي نه هیڅوک دَ خطا په فریب سره سخت دله نه شي ۱۴ څکه چه ۱۴
مونږ په مسیح کښې شریکان شولو که شروع دَ اعتقاد تر آخره پوري ثابته
ونیسو ۱۵ چه ویلي شوي دي چه ۱۵
که چري نن ورځ دَده آواز واورئ
نو خپل زړونه مه سختوئ لکه دَ خپه کولو په وقت
۱۶ څکه چه څنو واوریده او دي ئي خپه کړ مگر نه هغو ټولو چه دَ ۱۶
موسیٰ په وسیلي له مصر راوتلي وُو ۱۷ او دي له چا نه ترڅلویښتو کالو ۱۷
پوري په قهر شه گنړه له هغوي سره نه شه څه ؟ چه خطائي وکړه
او اندامونه ئي په بیابان کښې پریوتل ۱۸ او دَ چا دَپارَ ئي قسم وخوړ ۱۸
چه دوي به څما په آرام کښې داخل نه شي مگر دَ هغو دَپارَ چه دي ئي و
نه مانه ۱۹ نو مونږ وینو چه هغوي دَ بي‌ایمانئ په سبب داخلیدلي نه شول۰ ۱۹

## څلورم باب

۱ نو مونږ دِ ووېرېږو هسې نه چه سره دَ بقا دَ وعدي دَ ننوتلو په ۱
آرام دَده کښې له تاسي نه څوک وروستو ښکاره شي ۲ څکه چه مونږ ۲
ته هم انجیل راکړي شوي دي لکه چه هغو ته لیکن هغو ته دَ کلام
آوریدلو فایده و نه رسوله څکه چه هغوي له آوریدونکو سره په
ایمان کښې گډ نه وُو ۳ ولي مونږ چه ایمان راوړي دَي په آرام ۳
داخل کیږو لکه چه ده وویل چه

ما په خپل غضب کښې داسي قسم خوړلي دَي
چه دوي به خما په آرام کښې داخل نه شي
۴ اګر که کارونه دَ عالم له بنياده پوره کړي شول ۴ ځکه چه ده په يو ځاي
کښې دَ اومي ورځي په باب داسي فرمايلي دِي چه
الله په اومه ورځ له خپلو ټولو کارونو آرام وکړ
۵ ۵ او بيا په دويم ځاي کښې هم چه
هغوي به خما په آرام کښې داخل نه شي
۶ ۶ پس هرګاه چه باقي ده چه ځني په هغه کښې داخليږي او هغوي چه
ورنبي انجيل ور ته اورولي شوي وه دَ نافرمانئ په سبب داخل نه شول
۷ ۷ بيا يوه بله ورځ مقرره کوي چه په داؤد سره پس له دومره مُدي
(په لفظ) دَ نن ورځي وايي لکه چه وړاندي ويلي شوي دِي چه
که نن ورځي دَده آواز واورئ
نو خپل زړونه مه سختوئ
۸ ۸ ځکه چه که يوشع ده لره آرام ورکړي وي نو ده به پس له هغه
۹ دَ بلي ورځي ذکر نه کاوه ۹ نو دَ الله دَ خلقو دَپارَ دَ سبت آرام
۱۰ باقي دَي ۱۰ ځکه چه هغه څوک چه په خپل آرام کښې داخل شه هم
هغه له خپلو کارونو آرام هم وکړ لکه چه الله له خپلو کارونو نه -
۱۱ ۱۱ نو راشئ چه مونږ کوشش وکړو چه په هغه آرام کښې داخل شو
۱۲ هسي نه چه څوک دَ هغي نافرمانئ په نمونه کښې پريوزي ۱۲ ځکه چه کلام
دَ الله ژوندي او اثرناک او له هري دوه مخي توري تيره دي او تر دي حده
پوري ځيرونکي چه ځان او روح او بندونه او ماغزه به سره بيل کړي
۱۳ او تميز کونکي دَ زړه دَ ګمانونو او دَ خيالونو دَي ۱۳ او هيڅ مخلوق له
ده نه پټ نه دَي بلکه دَ هغه دَ سترګو دَ وړاندي چه خمونږ ور سره
کار دَي ټول ځيزونه برمنډ او ښکاره دِي
۱۴ ۱۴ پس دي دَپارَ چه مونږ داسي سردار کوهن لرو چه دَ آسمانونو

له مینځ نه تیر شه یعني یسوع ابن الله نو مونږ دِ خپل اقرار ټینګ
١٥ و نیسو ١٥ ځکه چه مونږ داسې سردار کوهن نه لرُو چه ځمونږ په ضعیفو
کښ راسره همدرد نه شي بلکه په ټولو خبرو کښ بغیر له خطاؤ ځمونږ
١٦ په دود ازمایلي شوي دَي ١٦ نو مونږ دِ په همّت سره دَ فضل تخت ته نژدې
ورشُو تا چه مونږ رحم ونیسو او فضل بیاموُ چه په ښه وقت مو
مددګار شي ❊

## پنځم باب

١ ١ ځکه چه هر سردار کوهن چه دَ سړو له مینځ نه واخستلي شي هم
هغه دَ سړو دَپارَ مقرّر شوي دَي دَ الله په څیزونو کښ تا چه دَ
٢ خطاؤ دَپارَ نذرونه او قربانيِ پیش کړي ٢ او چه له جاهلانو او له
ګمراهانو سره همدردِي وکړي شي ځکه چه دي په خپله هم په ضعیفئ
٣ کښ ګرفتار دَي ٣ نو دي دَپارَ ضرور دِي چه دي هسې لکه چه دَ اُمت
٤ دَپارَ دَ خپل ځان دَپارَ هم قربانيِ پیش کړي ٤ او هیڅوک دا عزّت خپل
ځان لره نه اخلي مګر هغه چه دَ هارون په دود دَ الله بللي شوي
٥ وِي ٥ هم هسې مسیح خپل ځان ته دَ سردار کوهن کیدلو عزّت ور
نه کړ بلکه هغه چا چه ده ته يِ وویل چه

ته ځما زوي يې
نن ورځ مِ وزیږولې

٦ ٦ لکه چه په بل ځاي کښ هم وايِي چه

ته دَ ملکِ صادق په صف کښ ترابده پوري کوهن يې

٧ ٧ او هغه دَ خپل جسم په ورځو کښ په قوِي فریاد او اوښکو سره ناري
او آرزو و هغه چا ته نذر کړل چه دي يِ له مرګ خلاصولي شه او
٨ دَده دَ ویري په سبب واوریدلي شول ٨ او اګر که زوي وه مګر له هغو
٩ څیزونو چه پري ووردیده تابعداريِ يِ زده کړ ٩ او کامل شه او دَ
١٠ خپلو ټولو تابعدارانو دَ ابدِي نجات سبب شه ١٠ او بللي شوي له الله

په سردار کوهن دَ ملک صادق په صف کښې
١١ ١١ او دَده په باب کښې څمونږ ډيرې خبرې دي او دَ هغو بيان
١٢ کول گران دي ځکه چه ستاسي غوږونه درانه دي ١٢ ولې چه دَ دومره
مُدې په سبب بايده وه چه تاسي اُستاذان شوي وَي مگر تاسي
لا تر اوسه دَدي محتاج يئ چه نور ئي در زده کړي چه ابتدا دَ
عنصرونو دَ کلام دَ الله څه څيز دَي او تاسي خو محتاج دَ پيو شوئ
١٣ نه دَ سخت خوراک ١٣ دي دَپارَ هغه څوک چه پئ استعمال کوي دَ
١٤ صداقت په کلام کښې ناآزموده دي ولې چه ماشوم دَي ١٤ ليکن سخت
خوراک دَ کاملو سړو دَپارَ دَي چه دوي په سبب د زياتوالي دَ رياضت
حواس خپل مشغول لري چه په نيک او بدو کښې تميز کول پيژني ٭

## شپږم باب

١ ١ له دي سببَ دِ مونږ دَ مسيح دَ کلام ورنبي خبرې پريږدو او دَ کاملت
په لوري دِ وړاندي لاړ شو نه چه بيا دَ توبي کولو له مړو عملونو
٢ او په الله دَ ايمان راوړلو ٢ او دَ تعليم دَ بپتسماؤ او دَ لاسونو دَ
٣ ږدلو او دَ مړو پورته کيدلو او دَ ابدي عدالت بُنياد بيا نږدو ٣ او که الله
٤ اذن راکړي نو مونږ به دا وکړو ٤ ځکه هغوي چه يو وار روښان شول
او آسماني نعمتونه ئي وڅکل او په روح القدس کښې شريکان شول
٥ ٥ او دَ الله دَ نيکۍ خبري او دَ راتلونکي زماني دَ قدرتونو ئي وڅکله
٦ ٦ او چه پريوزي نو امکان نه لري چه دَ توبي دَپارَ سر دوباره نوي
شي چه بيا دَ الله زوي دَ خپل ځان دَپارَ په صليب کړي او رسوا
٧ ئي کړي ٧ ځکه هغه زمکه چه هغه باران وڅښي چه ډير واره ورباند
اوري او داسي زرغوني وټوکوي چه لايق وي دَ هغو دَپارَ چه دهقاني
٨ په کښې کوي نو هغه له الله برکت مومي ٨ مگر هغه چه اغزي او
خسک ررغونوي نامقبوله او لعنت ته نژدي ده او اُخر ئي سوزول دي
٩ ٩ مگر اي محبوبانو اگر که مونږ دا شان وايو نو هم ستاسي په

حق کښې له دي نه دَ ښو او دَ نجات دَ څیزونو یقین لرُو ۱۰ آخکه چه ۱۰
الله بي انصافه نه ذي چه هیر کړي ستاسي کار او هغه محبت چه
تاسي دَده په نوم ښکاره کړه دَ پاکانو خدمت مو وکړه او لا ئي کوئي -
۱۱ مګر مونږ دا آرزو لرُو چه هر یو له تاسي دِ دَ یقیني امید ۱۱
دَپارَ تر آخره پوري هم هغه کوشش ظاهر کړِئ ۱۲ تا چه سُست نه شئ ۱۲
بلکه دَ هغو مقتدیان شئ چه په ایمان او په اوږده زغم سره دَ
وعدو وارثان دِي

۱۳ هرکله چه الله له ابراهام سره وعده وکړه ځکه چه په ۱۳
هیڅ ئي له ځانَ لوي قسم خوړلي نه شه نو په خپل ځان ئي قسم
وخوړ و ئي ویل ۱۴ چه په تحقیق سره به زه تا ته په برکتونو سره ۱۴
برکت درکړم او په ډیر کثرت سره به ئي درکړم ۱۵ او په دي شان چه ۱۵
ده اوږد صبر وکړ نو هغه وعدي ئي و موندلي ۱۶ ځکه چه سړي خو ۱۶
په زیاتو لويو قسم خوري او هغوي لره دَ اثبات دَپارَ قسم دَ هر اختلاف
حد ذي ۱۷ نو په دي کښې الله اراده وکړه چه دَ وعدي په وارثانو دَ خپلي ۱۷
ارادي نابدلیدنه ډیره زیاته ښکاره کړي نو قسم ئي په مینځ کښې راوړ
۱۸ تا چه په سبب دَ دوو نابدلیدونکو کارونو چه په هغه کښې دروغ ویل ۱۸
دَ الله ممکن نه وُو زورآوره تسلي لرُو چه وزغلیدلو تا چه هغه پناه
ونیسُو چه دَ وړاندي مو یښی شوي دَه ۱۹ چه هغه دَ ځان دَ لنګر ۱۹
په شان لرُو چه حقیقي او مضبوط او دَ پردي دننه داخلیږي ۲۰ چه ۲۰
هلته کښې څمونږ دَپارَ یسوع لکه پیشوا ننوتلي دي چه دَ ملکِ صادق
په صف کښې تر ابده پوري سردار کوهن دي ؞

## اووم باب

آخکه چه دا ملکِ صادق بادشاه دَ سلیم دَ الله تعالیٰ کوهن چه دَ ابراهام ۱
استقبال ئي وکړ هغه وقت چه دي دَ بادشاهانو له ماتولو را وګرزیده
او ده ته ئي برکت ورکړ ۲ او چه ابراهام هم له ټوله ماله ده ته عُشر وبښه ۲

چه ترجمه ئي اوّل بادشاه دَ صدق او بيا دَ سليم بادشاه هم يعني دَ
۳ سلامتئ بادشاه ۳ بي پلاره او بي موره بي نسبه نه ئي ابتدا د ورځو
نه ئي انتها دَ ژوندون لرله بلکه مشابه دَ ابن الله تر ابده پوري کوهن
پاتي
۴ ۴ پس غور وکړئ چه دا څومره بزرګ وه چه ده ته څمونږ دَ پلرونو
۵ سردار ابراهام دَ لوټ له خاصه ماله عُشر ورکړ ۵ او په تحقيق هغه
کسان له بني لاوي نه چه کهانت مومي ورته حکم دَي چه په موافق
دَ شرعي دِ له اُمت نه لسمه اخلي يعني له خپلو ورونړو اګر که دوي
۶ دَ ابراهام له ملا نه راوتلي دِي ۶ ليکن هغه چا چه په نسب کښ له دوي
نه ګنړلي شوي نه دَي له ابراهام نه ئي عُشر اخستلي دَي او هغه ته
۷ چه وعدئ ورسره شوي وي برکت ئي ورکړي دَي ۷ او بي له تموله خلافَ
۸ ورکوتي له زيات لوي نه برکت مومي ۸ او دلته مړه کيدونکي سړي عُشر اخلي
ليکن هلته ئي هغه اخلي چه دَده په حق کښ ګواهي شوي دَه چه ژوندي
۹ دَي ۹ تر دي چه زه وايم چه هغه لاوي چه اوس عُشر آخستونکي دَي
دَ ابراهام په واسطه ده هم عُشر ورکړ ۱۰ ځکه چه دَي لا تر اوسه دَ خپل
۱۰ پلار په ملا کښ وه چه ملکِ صادق دَده استقبال وکړ
۱۱ ۱۱ نو که چري په وسيلي دَ لاوي والي دَ کهانت کامل توب وَي چه اُمت
په هغه سره شريعت موندلي دَيَ نو نورڅه حاجت وه چه په صف دَ
۱۲ ملکِ صادق بل کوهن پورته شي او په صف دَ هارون ګنړلي نه شي ۱۲ لو
۱۳ کهانت بدل شي نو بدلون دَ شريعت به ضرور وشي ۱۳ ځکه چه هغه سړي
چه دَده په حق کښ دا ويل کيږي په بلي فرقي کښ شريک وه چه له هغي
۱۴ نه هيچا دَ قربانګاه خدمت ونه کړ ۱۴ ولي چه دا معلومه ده چه څمونږ
خداوند دَ يهوداه له فرقي نه ختلي دَي چه موسيٰ له دغي نه دَ کوهنانو په
۱۵ باب کښ هيڅ ونه ويل ۱۵ او له دي نه زياته ښکاره دَه چه بل کوهن دَ
۱۶ مَلِکي صادق په شان پورته کيږي ۱۶ چه دَ جسماني حکم دَ شريعت په شان

نه دي بلکه دَ غير فاني ژوندانه دَ قدرت په طور دَي ۱۷ چه هغه دا ۱۷
شاهدِي ور باندي لِي چه

ته دَ مَلِکي صادق په صف کښ ترابده پوري کوهن يي

۱۸ پس وړاندني حکم دَ ضعيفي او دَ نافائدي په سبب باطل شه ۱۹ ځکه چه ۱۸ ۱۹
شريعت هيڅ څيز کامل نه کړ ليکن يو غوره اميد په مينځ کښ راننوت
چه په هغه سره الله ته نژدي کيږو ۲۰ او دومره قدر چه دغه بي‌سوګنده ۲۰
نه دي ځکه چه هغوي بي‌سوګنده کوهنان شول ۲۱ او دي له سوګند سره ۲۱
له هغه چا نه چه ده ته وويل چه

خداوند سوګند وخوړ او پښيمانه به نه شي

چه ته ترابده پوري کوهن يي

۲۲ پس يسوع دَ دومره قدر بهتر عهد ضامن شوي دي ۲۳ او هغه ډير ۲۲ ۲۳
دِي چه کوهنان شوي دِي ځکه چه دَ مرګ سره له بقا نه منع شول۔
۲۴ مګر دي چه ترابده پوري باقِي دَي ځکه بي‌زواله کوهنِي لرِي ۲۵ دي دَپارَ ۲۴ ۲۵
دي توان لرِي چه هغوي چه دَده په وسيلي الله ته وړاندي کيږِي تر
آخره پوري به يئ خلاص کړِي ځکه چه دي دَ هغو دَ شفاعت کولو دَپارَ
تل تر تله ژوندي دي

۲۶ نو داسي سردار کوهن خمونږ دَپارَ لايق وَه چه قُدُّوس او بي‌شرَ ۲۶
او بي‌عيبَ او له خطاکارانو بيل او له آسمانونو اعلىٰ شه ۲۷ هغه چه ۲۷
دَ سردار کوهنانو په شان هره ورځ ضرورت نه لرِي چه اول دَ خپلِ
ځان دَ خطاؤ دَپارَ او بيا دَ نور امّت دَ خطاؤ دَپارَ قربانِي پيشه کړِي
ځکه چه ده دا په يو وار وکړه چه خپل ځان يئ نذر کړ ۲۸ ځکه چه شريعت ۲۸
خو هغه سړِي په سردار کوهنئ مقرّر کوِي چه ضعيف دَي مګر دَ سوګند کلام چه
پس له شريعتَ دَي ځوی مقرّر کوِي چه ترابده پوري کامل کړي شوي دَي +

## اتم باب

۱ پس سر دَ خبري دا دَي چه مونږ داسي سردار کوهن لرُو چه په ښي لاس ۱

۲ دَ تخت دَ عظمت په آسمانونو کښې کښيناست ۲ چه دَي دَ مقدّسو مکانو
او دَ هغې حقيقي خيمې خادم دَي چه هغه خداوند ودروله نه سړو
۳ ۳ ځکه چه هر سردار کوهن دَدې دَپارَ مقرّر کيږي چه نذرونه او قربانئ
پيش کړي نو دې دَپارَ ضرور دي چه دغه څخه دِ هم څه وِي چه پيش
۴ ئې کړي ۴ نو که دَي په زمکه باندې وې نو کوهن به هم نه وه ځکه چه
۵ هغه (کوهنان) شته دې چه دَ شريعت په موافق قربانئ پيش کوي ۵ او دَ
آسمانِي څيزونو دَ نمونې او دَ سيورې په شان عبادت کوي لکه چه موسیٰ
ته چه دَ خيمې دَ جوړولو الهام وشه و ئې ويل گوره چه ته دَ هغې نمونې په
شان چه په غره باندې چه تا ته ښکاره شوه ټول څيزونه جوړ کړه -
۶ ۶ ليکن اوس ئې دومره قدر لوي خدمت موندلي دَي لکه څوچه دي دَ
هغه غوره عهد مياځګري دي چه په ډيرو بهترو وعدو مقرّر شوي دي
۷ ۷ ځکه چه که چرې هغه وړمبي عهد بيعيب وې نو دَ دويم دَپارَ به ځاي
۸ لټولي شوي نه وه ۸ ځکه چه دي په ملامتولوسره هغو ته وايي چه

گوره خداوند فرمايي هغه ورځ راځي
چه زه به دَ اسرائيل له کوره او دَ يهودا له کوره سره نوي عهد
پوره کړم
۹ ۹ نه دَ هغه عهد په شان چه ما دَ هغو له پلرونو سره په
هغې ورځې وکړ
چه دَ دوي لاس مِ ونيو چه دَ مصر له زمکې ئې را وباسم
ځکه چه دوي څما په عهد ټر نه شول
او زه ور نه بې پروا شوم خداوند وايي
۱۰ ۱۰ ځکه چه دا هغه عهد دي چه زه به ئې دَ اسرائيل له کور
سره پس له هغو ورځو وترم خداوند وايي
چه زه خپل حکمونه دَ دوي په ذهنونو کښې ورکړم
او دَ دوي په زړونو به ئې وليکم

او زه به دَ دوي الله شم
او دوي به مِ امّت شي
۱۱ او بيا به هر يو خپل ښهري او هر يو خپل ورور ته ۱۱
ور زده نه کړي چه ووايي چه خداوند وپيژنه
ځکه چه ټول به له ورو کو نه تر لويو پورې ما وپيژني
۱۲ دي دَپارَ چه زه به دَ دوي په ناراستئ باندې مشفق شم ۱۲
دَ دوي خطاوې به بيا په ياد نه کړم
۱۳ او چه ده دَ نوې ذکر وکړ نو اوّل ئي زوړ وګاڼه او هغه چه ۱۳
زوړ او زړلي دي هغه زوال کيدلو ته نژدې دي ❊

# نهم باب

۱ نو اوّل عهد لره فرضونه دَ عبادت او دنياوي مقدس وُو ۲ ځکه ۱ ۲
چه وړمبي خيمه تياره کړې شوه او په هغې کښ ډيوټ او خوانچه او
دوډئ دَ نذر وې او هغې ته مقدسه ويلې شوه ۳ ليکن دَ دويمې ۳
پردې دَ وروستو هغه خيمه وه چه قدس الاقداس ورته ويلې شوه-
۴ چه په دغه کښ زرّين مجمر او صندوق دَ عهد وُو چه چاپيره په زرو ۴
مرصّع وه او چه په هغه کښ دَ زرو دبلې وه چه په کښ من وه او
همسا دَ هارون چه ټوکيدلې وه او تختې دَ عهد وې ۵ او دَ هغې دَپاسه ۵
دَ جلال کروبيانې په کفارت‌ګاه سيورې کونکي وې او اوس دَدې خبرو
بيان په تفصيل سره کول ضرور نه دي ۶ نو دا څيزونه داسې طيار شوي ۶
دي نو کوهنان اولې خيمې ته هر وقت دَ عبادت ادا کولو دَپارَ ننوزي
۷ ليکن دويمې خيمې ته خاص سردار کوهن په کال کښ يو وار ليکن نه ۷
بغير له وينو چه دَ خپل ځان او دَ امت دَ غلطئ دَپارَ ئي پيش کوي
۸ نو روح القدس په دي شان اشارت کاوه چه تر هغه. پورې چه وړمبئ ۸
خيمه ولاړه ده دَ مقدس لار ظاهره کړې نه شوه ۹ او دا دَ اوسني حال ۹
مثال دَي چه نذرونه او قربانئ په کښ پيش کيږي چه عبادت کوونکي دَ تميز

۱۰ کولو په باب کامل کوِلي نه شِي ۱۰ چه دغه تش په خوراکونو او په څښاکونو
او په رنګارنګو غسلونو چه نفساني فرضونه دِي دَ صحي کولو تر وقتَ پوري
ينبي شوي وُو

۱۱ ۱۱ ليکن چه مسيح دَ راتلونکو نعمتونو سردار کوهن راغي نو په
ډيري لويي او کاملي خيمه کښ چه دَ لاسونو جوړه شوي نه ده يعني
۱۲ دَ دي پيدائښت نه دَه ۱۲ او نه په وينو دَ بزو او سخو بلکه په خپلو وينو
۱۳ سره يو وار اقدس ته ننوت او ابدي فديه ئي وموندله ۱۳ ځکه چه
که چري ويني دَ بزو او دَ سخو او ايري دَ سخيو چه په ناپاکانو چنړکاؤ
۱۴ کړي شي تر پاکئ دَ جسم مقدّس کوِي ۱۴ نو څومره زيات دَ مسيح ويني چه
ده دَ ابدي روح په وسيلي خپل ځان الله ته بيعيبه قرباني پيشه کړه ستا
تميزونه به له مړو کارونو پاک کړي تا چه تاسي دَ ژوندي الله عبادت
۱۵ وکړئ ۱۵ او له دي سببَ دَ نوي عهد ميانځګړي دي تا چه په مرګ سره
چه دَ وړاندِني عهد دَ تعدئ دَ کفاري دَپارَ شوي دَي هغه کسان چه
۱۶ بللي شوي دي دَ ابدي ميراث وعده حاصله کړي ۱۶ ځکه هرچرته چه
۱۷ وصيت دَي دَ وصيّت کوِنکي دَ مرګ ذکر ضرورُ کيږي ۱۷ ځکه چه وصيت
په مړو ثابت کيږي نو چري تر هغه پوري چه وصيت کوِنکي ژوندي دي
۱۸ قوت لرِي څه ؟ ۱۸ نو له دي سببَ هغه وړنبي عهد هم بي وينو ثابت کړي
۱۹ شوي نه دَي ۱۹ ځکه چه موسیٰ چه ټول امّت ته هرحکم دَ شريعت
په موافق ووايه نو ده دَ سخو او دَ بزو ويني له اوبو او له سرو وړو
او له زوفا سره واخستلي په هغه کتاب او په ټول امّت ئي وپاشلي
۲۰ او وئي ويل ۲۰ چه دا دَ هغه عهد ويني دِي چه الله تاسي ته په هغه
۲۱ حکم درکړ ۲۱ او هم په دي شان ئي دَ خيمي او دَ خدمت په ټولو لوښو
باندي ويني وپاشلي نو ټول څيزونه په موافق دَ شريعت قريب په وينو پاکيږي
او بي دَ وينو له تويولو نه هيڅ معافي نشته

۲۲ ۲۲ پس ضرور دِي چه نموني دَ هغو څيزونو چه په آسمان کښ دِي

پہ دي ښیزونو سرہ پاکي کړي شِي مګر هم هغهِ آسمانِي ښیزونه له دي
نه په غوره قربانۍ سره پاکیږي ۲۴ ځکه چه مسیح هغه دَ لاس جوړ شوِي ۲۴
مقدّس ته ننوتلي نه دَي چه مثال دَحقیقي مکانونو دَي مګر بعینه
و آسمان ته تاچه اوس دَ الله دَ مخ دَ وړاندي څمونږ دَپارَ ظاهر شِي
۲۵ لیکن داسي نه دِي چه دَي خپل ځان وار په وار پیش کړِي لکه سردار ۲۵
کوهن اقدس ته کال په کال دَ نورو په وینو سره ننوزِي ۲۶ او که نه ۲۶
نو ضرور وه چه دي دَعالم له بنیاد نه وار په وار دردیدلي لیکن اوس
دَدي زماني په آخر کښ یو ځل ظاهر شوي دي تاچه دَخپل ځان په
قربانۍ سره خطا باطله کړِي ۲۷ او لکه چه دَ سړو دَپارَ یو وار مړکیدل ۲۷
او پس له هغه نه عدالت مقرر دَي ۲۸ هم هسي مسیح یو وار قربانۍ ۲۸
پیش کړي شه تاچه دَ ډیرو خطاوي یوسِي او بل وار بي له خطا نه
دَ نجات دَپارَ هغو ته ظاهر شِي چه دَده انتظار کوِي ÷

# لسم باب

۱ ځکه شریعت چه دَ راتلونکو نعمتونو سیوري دَي نه اصلي صورت ۱
دَ هغوِ ښیزونو هرګز نه توانیږي چه په هغو قربانیو سره چه مدام
ئي کال په کال پیش کوِي نزدي ورتلونکي به کامل کړِي ۲ او که نه نو ۲
ولي دَ وړاندي کولو منعَ و نه شوه ځکه چه عبادت کونکِي چه په یو
وار پاک کړِي شوِي وُو بیا ئي دَخطاؤ تمیز نه لاره څه؟ ۳ مګر په ۳
هغو کښ کال په کال یادکارِي دَخطاؤ کیږِي ۴ ځکه چه امکان نه ۴
لرِي چه دَ غوایانو او دَ بزو وینِي خطاوي عفوه کړِي ۵ ځکه چه دي ۵
دَدنیا په ننوتلو سره وایِي چه

تا ذبیحي او قربانۍ و نه غوښتل
مګر ځما دَپارَ دِ جُسته تیاره کړه
۶ ته په سیزونکو قربانو او دَ خطاؤ په هدیو راضِي نه شوي ۶
۷ بیا ما وویل ګوره زه راځم ۷

ځما په حق کښ دَ کتاب په عبارت ليکلي شوي دِي
اي الله تا چه زه ستا اراده په ځاي راوړم
٨ ٨ اوس چه وايِي چه نا قربانئ او هديه او سيزونکي قربانئ او دَ خطاؤ
قربانئ و نه غوښتلي او نه په دغو راضِي شوي او دا خو دَ شريعت په موافق
٩ پيش کيږِي ٩ نو بيا وايِي گوره زه راځم چه ستا اراده په ځاي راوړم پس هغه
١٠ ورنبئ لِي کوِي تا چه دويمَ ثابتَ کړِي ١٠ او په دي ارادي سره مونږ دَ يسوع
١١ مسيح دَ جُسّي په يو وار قربانئ پيش کولو سره پاک کړِي شوِي يُو ١١ نو هرکوهن
ورځ په ورځ ودريږِي عبادت کوِي او هغه قربانئِ چه هرگز دَ خطا لرِي کولو
١٢ قابلي نه دِي ډير واره ئِ پيش کوِي ١٢ ليکن دغه چه دَ خطاؤ دَپارَ يوَ وار
١٣ قربانِي پيش کړه تر ابده پوري دَ الله په ښِي لاس کښيناست ١٣ او پس له
هغه په انتظار کښ دَي څو چه دَده دښمنان دَده تر ښپو دَ لاندي دَ ښپو
١٤ تکيه کړِي نه شِي ١٤ ځکه چه ده په يوِي قربانئِ سره پاکان تر ابده پوري
١٥ کامل کړِي دِي ١٥ او څمونږ دَپارَ روح القدس شاهدِي لِي ځکه چه پس له
١٦ هغه نه چه ده ويلِي وُو ١٦ چه
دا هغه عهد دَي چه زه به ئِ پس له دغو ورځو له دي قوم سره
و ترِم خداوند وايِي
زه به خپل حکمونه دَ دوي په زړونو کښ ورکړم
او دَ دوي په ذهنونو کښ به ئِ وليکم
١٧ ١٧ او زه به دَدوي خطاوي او بي شرعي بيا په ياد نه کړم
١٨ ١٨ اوس هرچرته چه دَدوي عفوه ده هلته دَ خطا دَپارَ قربانِي پيش کول نشته
١٩ ١٩ نو اي ورونړو چه مونږ په اقدس کښ دَ يسوع په وينو سره دَ داخليدلو
٢٠ همت لرُو ٢٠ په هغي تازه ژوندئ لاري چه ده دَ پردي يعني دَ خپل جسم له
٢١ مينځ نه څمونږ دَپارَ تياره کړِي دَه ٢١ او چه دَ الله په کور کښ لوي کوهن لرُو
٢٢ ٢٢ نو مونږ دِ په رښتِني زړه او په يقيني ايمان خپل زړونه له بد نيت نه
٢٣ چنړکاؤ کړو او خپلي جُسّي په پاکو اوبو وينځلي ورنژدي شُو ٢٣ او اقرار دَ

اسيد خپل دِ محکم ونيسو ځکه هغه څوک چه وعده ئي کړي ده آمين
دي ٢٤ او يو بل دِ ملاحظه کړُو تاچه مونږ يو بل دَ محبت او دَ نيکو ٢٤
کارونو دَپارَ و لمسوو ٢٥ او سره ټوليدل دِ پرِيږدو لکه چه دَ ٢٥
ځنو عادت دَي بلکه يو بل ته دِ نصيحت وکړُو او دا دِ دومره زيات وکړو
لکه چه تاسي وينئ چه هغه ورځ نژدي کيږي

٢٦ ځکه چه که پس له هغه چه مونږ دَ رښتنيِ معرفت حاصل ٢٦
کړ قصد دَ خطا وکړو نو بيا دَ خطاؤ دَپارَ قرباني پاتي نه دَه ٢٧ مګر ٢٧
يو هيبتناک انتظار دَ عدالت او غيرت دَ اور چه مخالفان به وخوري
(باقي دَي) ٢٨ هغه څوک چه دَ موسیٰ توريت ئي رد کړي دَي په دوو ٢٨
يا دريو شاهدانو بې صرفيِ مړ کيږي ٢٩ نو دَ څومره بدتر عذاب تاسو ګنړئ ٢٩
چه لايق دَ هغه سړي ځميږلي شي چه ابن الله ئي پايمال کړ او وينې
دَ عهد چه دي پري پاک شوي وه مرداري ئي وګنړلي او روح دَ فضل
ئي بې حرمته کړي دَي ٣٠ ځکه چه مونږ هغه پيژنُو چه ويلي ئي دِي چه ٣٠
بدله ورکول ځما (کار) دَي زه به بدله ورکړم او بيا چه خداوند به دَ
خپل امت عدالت وکړي ٣١ دَ ژوندي الله په لاس کښ پريوتل هولناک ٣١
دي

٣٢ پس تاسي هغه وړاندنئ ورځي يادي کړئ چه په هغو کښ ٣٢
سو پس له روښانيدلو دَ ډيرو کُشتيو دردونه وزغمل ٣٣ چه له ٣٣
يوي وجهي دَ ښکنځلو او دَ تنکسيو تماشاګاه شوئ او له بلي وجهي
دَ هغو خلقو شريکان شوئ چه داسي پري باندي تير شول ٣٤ او ٣٤
هم تاسي همدردان دَ قيديانو شوئ او دَ خپل مال لوټ مو په خوښئ
سره قبول کړ ځکه چه تاسي پخپله پوهيدلئ چه ستاسي دَپارَ بهتر
او دائمي مال په آسمان کښ دَي ٣٥ نو تاسي خپل همت مه غورزوئ ٣٥
چه دا لوي اجر لري ٣٦ ځکه چه تاسي دَ صبر حاجت لرئ تاچه اراده ٣٦
دَ الله وکړئ او وعدي حاصلي کړئ

۳۰ ۳۸ ځکه چه
دیره لږ مُده پاتې ده
چه راتلونکي به راشي او درنګ به و نه کړي
۳۸ ۳۸ او ځما صادق به په ایمان سره ژوندون وکړي
لیکن که ځوک پسته شي نو ځما ځان به پرې خوښ نه شي
۳۹ ۳۹ لیکن مونږ له هغو نه نه یُو چه دَ هلاکت په لورې ستنیږي بلکه
له هغو یُو چه دَ ځان ساتلو دَپارَ ایمان راوړي *

# یولسم باب

۱ ا پس ایمان باور دَي په هغو ځیزونو چه امید پرې کیږي او ثابتول
۲ دَ هغو چه لیدلي نه شي ۲ ځکه چه وړاندینو لره په دي کښ ګواهي
۳ کړي شوي وَه ۳ په ایمان سره پوهیږو چه عالمونه دَ الله په خبري
جوړ شوي دِي ځکه چه دیدني ځیزونه له ظاهري ځیزونو هست
۴ نه شول ۴ په ایمان سره هابیل له قاین نه دیره غوره قرباني دَ الله
په وړاندي تیره کړه او په دغي کښ ده لره دَ صادق کیدلو ګواهي
وشوه چه الله دَده په نذرونو ګواهي وکړه او دَ دغه په سبب اګر که
۵ مړ دَي لا تر اوسَ پوري خبري کوي ۵ او په ایمان سره حنوخ یوړ شه
تا چه مرګ وند وینې او وموند نه شه ځکه چه الله یوړ ځکه چه
دَده له وړلو وړاندي دا شاهدي ورباندي شوي وه چه دَي پسندیده
۶ دَ الله وه ۶ او بي له ایمانَ پسندیده کیدل امکان نه لري ځکه
چه هغه چا لره چه الله ته ورځي په دي ور ته ایمان راوړل ضرور
دِي چه دي شته دي او دا چه خپلو طالبانو ته اجر ورکونکي دَي -
۷ ۷ په ایمان سره نوح چه الهام وموند دَ هغو ځیزونو په باب چه لیدلي
شوي نه وُو وویریده یوه بیړۍ دَ خپل تبر دَ خلاصولو دَپارَ جوړه کړه
او په دي سبب يې دنیا پړه کړه او دَ هغه صداقت وارث شه چه دَ
۸ ایمان په موافق دَي ۸ په ایمان سره ابراهام چه وبللي شه تابعداري يې

وکړه چه هغه ځای ته ووزي چه به میراث سره ئې اخستونکي وه او
۹ ووت او لا نه پوهیده چه چرته ځي ۹ په ایمان سره دَ وعدي په زمکي
کښ داسي اوسیده لکه په پردۍ زمکه کښ او له اسحق او له یعقوب
۱۰ سره چه وارثان هم دَ هغې وعدي وُو په خیمو کښ اوسیده ۱۰ ځکه
چه دي دَ هغه ښهر منتظر وُو چه بنیادونه ئې لرل چه معمار او
۱۱ صانع دَ هغه الله دَی ۱۱ په ایمان سره ساري په خپله دَ نسل موندلو
قدرت واخست پس له وقتَ دَ ځوانۍ ځکه چه وعده کونکي ئې برحق
۱۲ وګانړه ۱۲ دي دَپارَ له یوه نه چه هغه دَ مړي په شان وه لکه ستوري
دَ آسمان چه ډیر دي او لکه شګي دَ دریاب دَ غاړي چه له شماره
تیري دِي (هومره) و زیږیدل

۱۳ ۱۳ دا ټول په ایمان کښ مړه شول او وعدي ئې حاصلي نه کړي
بلکه له لري ولیدلي او تسلیم او اقرار ئې وکړ چه دوي په زمکه کښ
۱۴ لکه بیګانه او مېلمانه وُو ۱۴ نو هغوي چه داسي خبري کوي نو ظاهره
۱۵ وي چه دوي وطن لټوي ۱۵ او که دوي هغه وطن په یاد راوړلي چه
۱۶ ور نه راوتلي وُو نو البته دَ بیرته ورګرزیدلو فرصت ئې لاره ۱۶ لیکن
اوس هغوي دَ یوه غوره یعني دَ آسماني ملک آرزو کوي دي دَپارَ الله
له هغو نه شرمیږي چه الله ئې وبللي شي ځکه چه دَ دوي دَپارَ ئې یو
ښهر تیار کړي دَی

۱۷ ۱۷ په ایمان سره ابراهام ازمایلي شوي اسحاق ئې قرباني پیش کړ
او هغه چه وعده ئې موندلي وَه یواځي زیږیدلي خپل ئې پیش کړ -
۱۸ ۱۸ هغه چه ورته ویلي شوي وُو چه ستا اولاد به په اسحق بللي شي
۱۹ ۱۹ او داګمان ئې وکړ چه الله دَ مړو په پورته کولو هم قادر دَی او له دي
۲۰ ځای نه ده هغه دَ مثال په طور وموند ۲۰ په ایمان سره اسحاق دَ
۲۱ راتلونکو څیزونو په باب یعقوب او عیسو ته برکت ورکړ ۲۱ په ایمان
سره یعقوب دَ مرګیدلو په وقت و هر یوه زوي دَ یوسف ته برکت ورکړ

۲۲ او دَ خپلي همسا په سر ئي سجده وکړه ۲۲ په ايمان سره يوسف دَ مړ
كيدلو په وقت كښ دَ بنيِ اسرائيلو دَ كوچ كولو ذكر وكړ او دَ خپلو
۲۳ هډوكو په باب ئي حكم وركړ ۲۳ په ايمان سره موسیٰ چه پيدا شه
نو دري مياشتي خپل پلار او مور پټ كړ ځكه چه دغو وليد چه دا
۲۴ ښكلي هلك دَي او دَ بادشاه له فرمانه ونه ويريدل ۲۴ په ايمان سره
موسیٰ چه لوي شه دَ فرعون دَ لُور له زوي بللو نه ئي انكار وكړ -
۲۵ ۲۵ چه ده دَ الله له امت سره ذليل كيدل له هغو نه بهتر وګڼل
۲۶ چه په خطا سره لږ څه ساعت مزه اخلي ۲۶ او ښكنځل دَ مسيح ئي
له خزانو دَ مصر زيات لوي دولت وګڼړه ځكه چه ده دَ اجر په لوري
۲۷ نظر كاوه ۲۷ په ايمان سره ئي مصر پريښود او دَ بادشاه له غضب ئي
ويره ونه كړه ځكه چه ګويا كښ په ليدلو دَ هغه چه ليدلي نه شه مضبوط
۲۸ شه ۲۸ په ايمان سره ئي عيدِ فصح او دَ وينو چنړكاؤ وكړ تا چه دَ
۲۹ ړنبي زيږيدلو هلاكونكي به ده لاس كښي نه دړي ۲۹ په ايمان سره دوي
له دريابِ احمر نه داسي تير شول لكه په وچي زمكي چه مصريانو
۳۰ ازمايښت دَ هغه وكړ نو غرق شول ۳۰ په ايمان سره دَ اريحا ديوالونه چه
۳۱ تر اوو ورځو پوري چاپيره نيولي وُو پريوتل ۳۱ په ايمان سره راحابه
كنچنئي له نافرمانو سره هلاكه نه شوه ځكه چه دي جاسوسان په
سلامتيا قبول كړل

۳۲ ۳۲ او بيا نور څه ووايم وقت مِ نه پاتي كيږي چه دَ ګدعون
او دَ بارق او دَ شمسون او دَ اِفتاح او دَ داؤد او دَ سموئيل او
۳۳ دَ نبيانو بيان وكړم ۳۳ چه دوي دَ ايمان په وسيلي بادشاهتونه
مغلوب كړل او په صداقت كولو سره ئي وعدي ومونډلي دَ زمرو
۳۴ خولي ئي بندي كړي ۳۴ دَ اور قوّت ئي مړ كړ دَ تُورو له څخ نه خلاص
شول له ضعيفئ نه قوتناك شول په جنګ كښ زوراور شول دَ بيګانهٔ
۳۵ ۳۶ لښكري ئي وتښتولي ۳۵ ښځو خپل مړي په قيامت بياموندل ۳۶ او نور په

عذاب کړي شول او خلاصي ئي قبوله نه کړه تا چه غوره قیامت ومومي
او نور دَ ټوقو او دَ کروړو بلکه دَ زولنو او دَ قید ازمایښت واخست -
۳۷ سنګسار شول او په اري څیري شول وازمایلي شول په قتل دَ تورې ۳۷
مړه شول او دَ ګډورو او دَ بزو په پوستونو کښ په تنګسو کښ محتاج
ربړولي ذلیل شوي ګرزیدل ۳۸ او دنیا دَدوي لایقه نه وه په بیابانونو او ۳۸
په غرونو او په غارونو او دَ زمکي په چاودونو کښ آواره ګرزیدل ۳۹ او ۳۹
دا ټول دَ ایمان په وسیلي ورباندي شاهدي وشوه او وعده ئي ونه
موندله ۴۰ چه الله وراندي څمونږ دَپارَ یو غوره څیز مقرّر کړ تا چه ۴۰
هغه بي له مونږ نه کامل کړي نه شي ٭

## دولسم باب

۱ پس هر کله چه مونږ په ګردا ګرد خپل داسي اوربځ دَ شاهدانو ۱
لرو نو راشئ چه مونږ هر دروند پیټي او خطا چه په آسانئ سره
رانه چاپیر شوي دي لري کړو او په صبر سره په هغي سعي کښ چه
څمونږ دَ وړاندي ینبي شوي ده وزغلو ۲ او په لوري دَ سردار او ۲
کامل کونکي دَ ایمان (یعني) دَ یسوع کتونکي شو چه ده دَ هغي خوښئ
دَپارَ چه دَده دَ وړاندي ینبي شوي وه صلیب ئي وزغامه شرمندګي
ئي سپکه وګڼړله او په ښي لوري دَ تخت دَ الله کښیناست ۳ نو تاسي ۳
په هغه فکر وکړئ چه له خطاکارانو ئي دَ دومره مخالفت دَدوي زغم
وکړ هسي نه چه تاسي په خپلو ځانونو کښ ستړي او پریشانه شئ
۴ تاسي لا تر اوسَ پوري دَ خطا په مقابلي کښ تر خونه پوري په سعي ۴
سره ودریدلي نه یئ ۵ او تاسي هغه نصیحت لکه چه دَ زامنو ۵
په شان مو پوهوي هیر کړي دَي چه

اي ځما زویه دَ خداوند تنبیه سپکه مه ګڼړه
او چه هغه دِ ملامت کړي پریشان مه شه

۶ ځکه چه له هر هغه سره چه خداوند محبت کوي تنبیه ورکوي ۶

او هر زوي چه دي ئي قبول کړي په کوړړو ئي وهي
٧ ٧ تاسي دَده په تنبيه زغم وکړئ نو الله به له تاسي سره دَ زامنو په شان
٨ سلوک وکړي ځکه چه کوم يو زوي دَي چه پلار ئي تنبيه نه ورکوئ ٨ ليکن
که تاسو بې تنبيه يئ چه ټول په کښې شريکان شوي دِي نو تاسي حرامزادګان
٩ ئي زامن نه يئ ٩ او زيات له دي مونږ جسماني تنبيه راکونکي پدرونه
لرل او مونږ ورنه شرميدلو مونږ به ډېر زيات دَ ارواحونو پلار ته تابعداري
١٠ ونه کړو او ژوندون به وکړو څه ؟ ١٠ ولي چه دوي مونږ ته لږي ورځي
لکه چه ښه ئي ګڼړل تنبيه ئي راکوله ليکن دي دَ فايدي دَپارَ تا چه
١١ مونږ دَده په قدوسيت شريکان شو ١١ او هره تنبيه فيالحاله نه ليدلې
کيږي چه خوښئِ لره ده بلکه غم لره ليکن په آخر کښې هغو ته چه
تربيت ئي پرِ موندلي دي دَ صداقت ميوه دَ سلامتئ دَپارَ ورکوي -
١٢ ١٣ ١٢ دي دَپارَ سُست لاسونه او شل زنګنونه سم کاندي ١٣ او دَ خپلو
پښو دَپارَ سم منهونه جوړ کړئِ تا چه هغه چه ګډوي له لاري خطا نه شي
بلکه په زياته سره دِ شفا مومي
١۴ ١۴ او له ټولو سره په صلحي بيسي شئ او په هغه قدوسيت
١٥ پسي چه بې له دغه به هيڅوک خداوند ونه وينئ ١٥ او لحاظ کوئ هسي
نه چه څوک له فضل دَ الله نه وروستو شي هسي نه وِي چه ولي
دَ ترخو پورته و ټوکيږي او هجوم وکړي او په دغه سره ډېر پليت شي
١٦ ١٦ هسي نه چه څوک زاني او بې دينه وِي لکه عيسو چه دَ يو خوراک
١٧ دَپارَ ئي دَ خپلي مشرئِ حق خرڅ کړ ١٧ تاسي پوهيږئِ چه ده پس له
هغه هم دا واغوښتل چه دَ برکت وارث شي مګر رد کړې شه
ځکه چه دَ توبي ځاي ئي ونه موند اګر که ئي هغه په اوښکو
سره ولټاوه
١٨ ١٨ او تاسي هغه غرِه ته را نه غلئِ چه مښه کړي شوي او په اور
١٩ سره سوزيدونکي وه او تورتم ته او تياري ته او طوفان ته ١٩ او دَ شپيلئِ

غرِ ته او دَ خبرو آواز ته چه آورېدونکو التماس وکړ چه دا کلام دِ
زیاتَ مونږ ته و نه ویلي شي ۲۰ ځکه چه دوي دَ هغه حکم برداشت ۲۰
کولي نه شه چه که کوم ځناور هم هغه غر مسّه کړي نو سنګسار
دِ کړي شي ۲۱ او هغه ننداره دومره هولناکه وه چه موسیٰ وُوِ ۲۱
چه زه حیران او په لړزه کښ یم ۲۲ بلکه تاسي راغلي يئِ دَ صیحون ۲۲
غره ته او دَ ژوندي الله و ښهر ته یعني آسماني اورشلیم ته او
په زرګونو فوځونو دَ فرښتو ته ۲۳ او عام ټولي ته او دَ وړښي زیږېدلو ۲۳
کلیسیي ته چه په آسمانونو کښ لیکلي شوي دَه او دَ ټولو عادل
الله ته او دَ کاملانو صادقو ارواحونو ته ۲۴ او یسوع ته چه دَ ۲۴
نوي وعدي میانځګړي دي او هغو څڼرکاؤ شوو وینو ته چه دَ هابیل
له وینو بهتري خبري کوِي ۲۵ ګورئِ چه تاسي له خبري کونکي انکار ۲۵
و نه کړئِ له دي سببَ چه که هغوي په تیښته خلاص نه شول
چه له هغه چا نه ئي انکار وکړ چه په زمکه ئي خبري کولي نو څومره
زیات به مونږ چه مخ ګرزونکي یو له هغه چا نه چه له آسمانَ دي
خلاص نه شوُ ۲۶ چه هغه وقت آواز دَ ده زمکه ولړزوله لیکن ۲۶
اوس خو ئيُ وعده وکړه و ئي ویل چه زه به یو وار بیا هم نه یواځي
زمکه بلکه آسمان به هم وخوځوم ۲۷ لیکن دا ویل چه بیا یو وار دلالت ۲۷
په دي کوِي چه خوځیدلِي څیزونه دَ جوړو شوو څیزونو په شان
به تغیر کړي شي تا چه هغه څیزونه چه خوځولي شوي نه دِي باتي شي
۲۸ پس مونږ دِ داسي بادشاهي چه نه خوځیږي بیا واخلو نو شکر دِ ۲۸
وکړو چه په دغه سره عبادت دَ الله په پسندیده شان له تقویٰ
او له دینداريِ سره وکړُو ۲۹ ځکه چه څمونږ الله خوړونکي اور دَي ۲۹

## دیارلسم باب

۱ دَ وروروليِ محبّت دِ پایداره وِي ۲ دَ مسافرانو نمانځنه مه هیروئ ۱ ۲
ځکه چه څنو ناخبره په دي سبب دَ فرښتو نمانځنه کړي دَه ۳ قیدیان ۳

داسې په یاد کاږئ لکه چه له دوی سره قیدیان یئ او هغوی چه
۴ ذلیل کړې شوې دي لکه چه تاسې هم په جسې کښې یئ ۴ نکاح دِ
په ټولو کښې عزتمند او بچاونړه دِ بې عیبه وِي لیکن الله به دَ زانیانو
۵ او دَ فاسقانو عدالت وکړي ۵ ستاسې خصلت دِ زرودوست نه وِي او
په هر هغه څه چه درځنه وِي کفایت کوئ ځکه چه ده ویلي دي
۶ چه زه به دِ هرګز پرېښته نه کړم او هرګز به دِ پرې نه ږدم ۶ او
دې دَپاره مونږ په خاطرجمعي سره وایو چه

خداوند ځما مددګار دي زه به و نه وېرېږم
او سړي به ځما څه وکړي

۷ ۷ هغه ستاسې پیشوایان چه تاسې ته ئې کلام دَ الله وویه په یاد
کړئ او دَ دوی دَ خوي انجام ته نظر وکړئ دَ دوی دَ ایمان مقتدیان
۸ شئ ۸ یسوع مسیح پرون او نن ورځ او تر ابده پورې هم هغه دي
۹ ۹ او په رنګارنګ او په پردیو تعلیمونو له ځاي نه تردد مه شئ ځکه
چه دا ښه دي چه زړه په فضل سره مضبوط شي نه په خوراکونو
۱۰ چه پسې ګرزېدونکو ئې فایده پرې و نه موندله ۱۰ مونږ یوه قربانګاه
لرو چه له دې نه هغه لره چه دَ خیمې خدمت کوي اختیار نه لرې
۱۱ چه ور نه خوراک وکړي ۱۱ ځکه چه دَ هغو ځناورو جسې چه سردار
کوهن دَ هغو وینې و اقدس ته دَ خطا په باب دننه وروړې له
۱۲ خیمه‌ګاه دَ باندې سېځلې کېږي ۱۲ دې دَپاره یسوع هم چه امت په
۱۳ خپلو وینو سره پاک کړي له لښکرګاه دَ باندې ودرېده ۱۳ دې دَپاره
دِ مونږ خپل بېغور واخلو او له لښکرګاه دَ باندې دِ دَده په لوري
۱۴ ورشو ۱۴ ځکه چه مونږ دلته پایدار ښهر نه لرو بلکه مونږ هغه
۱۵ نه هغه راتلونکي لټوو ۱۵ پس دَده په وسیلې دِ ذبحه دَ ثنا دَ الله
مدام پیش کړو یعنې میوه دَ شونډو چه اول دَده په نوم اقرار کوي
۱۶ ۱۶ لیکن دَ ښېګړې او دَ شراکت کار مه هېروئ ځکه چه الله په داسې

۱۷ ذبحو سره بنه راضِي کيږي ۱۷ دَ خپلو پيشوايانو تابعدار او فرمانبردار
اوسئ ځکه چه دوي ستاسي دَ ځانونو دَپارَ بيداري کَوي لکه چه
ځوک حساب ورکوي تاچه دوي دغه په خوښئ سره وکړي نه
په غم سره ځکه چه دا ستاسي دَپارَ بيفايدي دِي
۱۸ ۱۸ ځمونږ دَپارَ دعا کوئ ځکه چه ځمونږ يقين دَي چه نيک
تميز لرُو چه په ټولو خبرو کښ له نيکئ سره گُذران کول غواړو
۱۹ ۱۹ او زه ډيرزيات سوال کوم چه تاسي دا غواړئ چه زر زر بيرته
و تاسي ته در و رسيږم
۲۰ ۲۰ او هغه دَ صلحي الله چه دَ ابدِي عهد په وينو سره لوي
شپون دَ گډورو ځمونږ خداوند يسوع ئې له مړو نه پورته بوت -
۲۱ ۲۱ تاسي دِ په هر کار کښ کامل کړي تاچه دَده اراده په ځاي راوړئ
او هرڅه چه دَده په حضور کښ پسنديده دِي په تاسي کښ دِ
دَ يسوع مسيح په وسيلي سره وکړي تاچه ده ته تر ابدالآباده
جلال وِي آمين
۲۲ ۲۲ او اي ورونړو زه تاسي ته سوال کوم چه تاسي دَ نصيحت
۲۳ زغم وکړئ چه ماخو تاسي ته لنډه خبره ليکلي ده ۲۳ تاسي پوه
شئ چه طمطاؤس ورور خلاص شه اوکه هغه زر راشي نو له ده
سره به تاسي ووينم
۲۴ ۲۴ ستاسي ټولو پيشوايانو او پاکانو ته سلام وايئ او هغه
کسان چه دَ اتاليي دِي تاسي ته سلام وايي
۲۵ ۲۵ له تاسي ټولو سره دِ فضل وِي - آمين *

# عام خط دَ يعقوب

## اوّل باب

١ يعقوب مريَ دَ الله او دَ خداوند يسوع مسيح هغو دوولسو فرقو ١
ته چه تار په تار شوي دِي سلام رسوِي
٢ اي څما وروڼرو هر كله چه په رنګارنګو آزماينښتوو كښ پريوزِئ نو ٢
دغه كامله خوښي وګڼرِئ ٣ او په دي پوه شئ چه ستاسي دَ ايمان آزماينښت ٣
صبر پيدا كوِي ۴ مګر دَ صبر كار دِ كامل وِي تاچه تاسي كامل او پوره شئ ۴
او په هيڅ څيز كښ نيمګړِي نه شئ
٥ او كه له تاسي نه څوک په دانائي كښ نيمګړِي وِي نو هغه دِ له الله ٥
نه سوال وكړِي چه ټولو ته ئې په سخاوت سره وركوِي او ملامتيا نه كوِي او
هغه ته به وركړِي شي ٦ ليكن په ايمان سره دِ سوال وكړِي او هيڅ شک ٦
راوړونكي دِ نه وِي ځكه چه شک راوړونكي دَ قعر درياب دَ موج په شان
دَي چه له باد نه رغړِي او اوړِي ٧ او دا سړِي دِ ګمان نه كوِي چه له خداوند ٧
نه به څه څيز مومي ٨ دوه زړِيَ سړِي په خپلو ټولو لارو كښ ناقراره ٨
٩ مسكين ورور دِ په خپلي سرفرازئ فخر وكړِي ١٠ او دولتمند دِ په خپلي ٩ ١٠
مسكينئ ځكه چه هغه به دَ واښو دَ ګلونو په شان تير شي ١١ ځكه چه نمر ١١
له سموم سره خيژِي او واښه وچوِي او ګلونه ئې رژيږِي او ښائسنت دَ څهري
ئې وركيږِي هم هسي به دولتمند په خپل رفتار كښ مړاوي شي
١٢ مبارک هغه سړِي دَي چه آزماينښت رغمِي ځكه چه قبول شوِي به هغه ١٢
تاج دَ ژوندانه مومي چه خداوند ئې خپلو محبّانو ته وعده كړِي دَه
١٣ هيڅ ازمايلي شوي دِ و نه وائِي چه زه له الله نه آزمايلي شوي يم ١٣
ځكه چه نه الله په بديو سره آزمايلي شي او نه بل څوک ازمائِي ١۴ مګر هر څوک ١۴
آزمايلي شي هر كله چه له خپل خواهش نه راښكلي او غولولي شي ١٥ بيا چه ١٥

١٦ خواهش حمل واخلي خطا زيږوي او خطا چه كامله شي نو مرگ پيدا كوي ١٦ اي
١٧ خما محبوبو ورونړو مه غوليږئ ١٧ هر ښه بخشش او هر كامل انعام له پاسه دَي
او دَ نُورونو له پلار نه راښكته كيږي چه ورخُنه دَ بدليدلو او دَ گردِش سيوري
١٨ نشته ١٨ ده په خپلي ارادي سره مونږ له حق كلام نه وزيږولو تاچه مونږ گويا
كښ نوي ميوه دَده له مخلوقاتو شُو
١٩ ١٩ اي خما محبوبو ورونړو په دا پوه شئ ليكن هر سړي دِ په اوريدلو
٢٠ كښ تيز په ويلو كښ درنگ كونكي او په قهر كښ سُست وِي ٢٠ خكه چه
٢١ دَ سړي غُصَّه دَ اَللّٰه دَ صداقت عمل نه كوي ٢١ دي دپارَ دَ ټولي گندگئ او
ډيروالي دُ بديئ وغورزوئ او په حليميئ كښ لگولي كلام قبول كړئ هغه چه
٢٢ قادر دي چه ستاسي خانونه خلاص كړي ٢٢ ليكن تاسي په كلام باندِ عمل كونكي
٢٣ شئ نه تش اوريدونكي چه خپلو خانونو ته فريب وركوي ٢٣ خكه چه كه څوك
اوريدونكيَ دَ كلام دَي او عمل كونكيَ نه دَي نو دغه دَ هغه سړي په شان
٢٤ دَي چه خپل خِلقِي مخ په آئينه كښ وِيني ٢٤ خكه چه خپل خان
٢٥ ته نظر كوي او خي او دستي ئې هير كړي چه څرنگ وه ٢٥ ليكن هغه چه
په كامل شريعت خبر شه په هغه شريعت دَ آزادگئ او ټينگ شه او اوريدونكي
نه هيرونكيَ شه بلكه عمل كونكيَ دَكار نو هغه به په خپل عمل كښ مبارك
٢٦ وِي ٢٦ كه څوك گنړي چه زه دينداريم او خپلي ژبي ته واگي نه اَچوي بلكه
خپل زړه وغولوي نو دَ دغه دينداري باطله ده
٢٧ ٢٧ پاكه او بي عيبه دينداري خمونږ دَ اللّٰه او دَ پلار په نزد دا ده
دَ يتيمانو او دَ كونډو دَ دوي په تنگسه كښ پوښتنه كول او خپل خان
له دنيا پاك ساتل ÷

## دويم باب

١ ١ اي ورونړو ايمان خمونږ دَ خداوند يسوع مسيح ذوالجلال په رويداريِ
٢ سره مه لرئ ٢ دي دپارَ چه كه څوك دَ سرو زرو له گوتي او له بريښيدونكيَ
جامي سره ستاسي جماعت ته دَر ننوزي او يوخوار هم په خيرنه جامه كښ

۳ در ننوزي ۳ او تاسي دَ بريښيدونکي جامي وال ته وګورئ او ووايئ چه ته دلته
ښه کښينه او خوار ته ووايئ چه ته هلته کښ ولاړ اوسه يا دلته څمونږ
۴ دَ پښو ترتکيه لاندِ کښينه ۴ نو ګنړه تاسي ځښله بيل شوي نه يئ؟ او دَ
۵ بدګمانئ حاکمان نه شوي څه؟ ۵ واورئ اي څما محبوبو وروڼو الله دَدي
عالم خواران په ايمان کښ دولتمند غوره کړي نه دي څه؟ او چه دَ هغي
بادشاهئ وارثان شي چه ده له هغو سره چه محبّت ورسره لري وعده پر
۶ کړي ده ۶ مګر تاسي خواران بيعزّته کړل ګنړه دولتمند په تاسي باندِ ظلم
۷ نه کوي څه؟ او عدالتونو ته مو نه راکاږي ۷ ګنړه دوي په هغه ښائسته نوم
۸ چه په تاسي ييني شوي دي کفر نه وايي څه؟ ۸ ليکن که تاسي هغه بادشاهي
شريعت پوره کړئ موافق دَ صحيفو چه ته له خپل ګاونډي سره دَخپل ځان
۹ په شان مينه کوه. نو تاسي ښه کوئ ۹ ليکن که تاسي رويداري کوئ نوخطا
۱۰ کوئ او له توريت به لکه تقصيرواران هسي پره کيږئ ۱۰ ځکه هغه څوک چه
ټول توريت ساتي مګر په يوه کښ تيندک وخوري هغه دَ ټول ګرم شه
۱۱ ځکه هغه چاچه وويل چه زنا مه کوه هم ئي وويل چه خون مه کوه نوکه ته
۱۲ زنا و نه کړي مګر خون وکړي نو ته دَ توريت تقصيروار شوي يي ۱۲ داسي خبري
کوئ او داسي عمل کوئ لکه هغوي چه دَ آزادګي له شريعته به حکم موندونکي
۱۳ شي ۱۳ ځکه چه حکم بي له رحمَ دي به هغه چاچه رحم نه کوي او رحم
په حکم باندِ فخر کوي

۱۴ ۱۴ اي څما وروڼو که څوک ووايي چه زه ايمان لرم مګر عمل نه لري
۱۵ نو څه فائده ګنړه هغه ايمان توانيږي چه خلاص ئي کړي ۱۵ که ورور
۱۶ يا خور برمنډ او دَ ورځي خوراک ته محتاج وي ۱۶ او له تاسي نه څوک
ورته ووايي چه په سلامتئ سره لاړ شئ تاوده او ماړه شئ ليکن تاسو
۱۷ حاجتونه دَ ځني ورنه کړئ نو څه فائده ۱۷ هم هسي ايمان که عمل نه لري
۱۸ په خپل ځان کښ مړ دَي ۱۸ ليکن څوک به ووايي چه ته ايمان لري او زه
عملونه لرم پس ستا ايمان بي له عملونو ما ته راوښيه او زه به خپل ايمان

۱۹ له خپلو عملونو سره تا ته در وښيم ۱۹ تـه ايمان راوړي چه هغه الله يو دَي
۲۰ ښه کوي شيطانان هم ايمان راوړي او لړزيږي ۲۰ ليکن اي خوشيَّ سړيه
۲۱ کَنړه ته پوهيدل غواړي چه ايمان بي له عملونو شنړ دَي ۲۱ کَنړه څمونږ
پلار ابراهام په عملونو سره صادق وشميرلي نه شه څه؟ هركله چه ده
۲۲ خپل زوي اسحاق په قربانګاه باندِ نذر کړ ۲۲ نو ته وينيي چه ايمان دَده
۲۳ له عملونو سره اثر وکړ او په عملونو سره ئي ايمان کامل شه ۲۳ او هغه صحيفه
پوره شوه چه وايي چه ابراهام په الله ايمان راوړ او دا دَده دَپاره صداقت
۲۴ وګڼلي شه او خليل الله وبللي شه ۲۴ نو تاسي وينيئ چه سړي په عملونو
۲۵ سره صادق شيرلي کيږي او نه تش په ايمان سره ۲۵ او په دي شان سره
راحابه کنجنيئِ هم په عملونو سره صادقه وشميرلي نه شوه څه؟ هركله چه دي
۲۶ استاذي قبول کړل او له بلي لاري نه ئي وويستل ۲۶ نو لکه چه جسّه بي روحه
مړه ده هم هسي ايمان بي عملونو مړ دي +

## دريم باب

۱ ۱ اي څما ورونړو ډير استاذان مه شئ چه پوهيږئ چه مونږ به له نورو
۲ زيات لوي عدالت اخلو ۲ څکه چه مونږ ټول به په ډيرو کارونو کښي
تيندک وخورو که څوک په خبرو کښي تيندک ونه خوري هم هغه
۳ کامل مرد او په جلب تينګ کولو دَ ټولي جسّي قادر دَي ۳ نو که
مونږ دَ آسونو په خولو کښي واګي اچوو تا چه تابعدار شي نو دَ هغو
۴ ټول بدن هم راګرزوو ۴ ګوري جهازونه هم چه څومره لوي دي او په تُندو
بادونو تيل وهلي شي ليکن په ورکوټي سِنکاونړ سره چه چرته دَ مانړګي
۵ مرضي غواړي هلته ئي ګرزولي شي ۵ په دي شان سره ژبه هم ورکوټي
اندام دَي مګر لوي فخر کوي ګوره چه لږ څه اور څرنګ لوي ځنګل سوزوي
۶ ۶ او ژبه اور دي دَ نا راستيئ عالم څمونږ په اندامونو کښي ژبه ده چه دا
ټول بدن پليتوي او دَ پيدائښت دائره سيزي او په خپله له جهنم نه سيزلي
۷ شي ۷ څکه چه هر ذات دَ څناورانو او دَ مرغانو او دَ خزنده ؤ او دَ دريائي

۸ ځيزونو دَ انسان له ذات نه تابع کيږي او تابع کړي شوي دِي ۸ ليکن ژبه
هيڅوک له انسان نه توانيږي چه تابع ئې کړي چه دا ناقراره بدي ډکه
۹ له زهرِ قاتلو ده ۹ په دي سره مونږ دَ خداوند او دَ پلار مبارکي
کوُو او په دي سره مونږ په هغو سړيو لعنت کوُو چه دَ الله مشابه شوي
۱۰ دِي ۱۰ له يوي خولي نه هم برکت او لعنت وزِي اي ځما ورونړو مناسب نه دِي
۱۱ چه دا څيزونه داسي وشِي ۱۱ کنړه کومه چينه له يوه سورِي نه خوږي اوترخې
۱۲ اوبه زيږوِي ۱۲ اي ځما ورونړو توانيږي چه دَ انځيرُونه ښوون راوړِي اوانګور
انځير او نه مالګيني اوبه خوږي ورکولي شِي
۱۳ ۱۳ څوک دَي چه په تاسي کښ دانا او عالِم دَي نو له نيکخوئِي دِخپل
۱۴ عملونه په حليمتوب دَ دانائِي ظاهر کړي ۱۴ ليکن که تاسي په خپل زړه
کښ تريخ غيرت او فتنه لرئِ نو فخر مه کوئِ او په خلاف دَ رښتيا دروغ
۱۵ مه وايئِ ۱۵ دا دانائِي له پاسَ راښکته کيدونکي نه ده بلکه زميني نفساني
۱۶ شيطانِي دَه ۱۶ ځکه چرته چه غيرت او فتنه ده هلته کښ تشويش او هر
۱۷ پليت کار دي ۱۷ مګر هغه دانائِي چه له پاسه ده نو اوّل خو پاکه ده بيا
صلحه کونکي حليمه نرمه دَه له رحم او له ښو ميوو نه ډکه بي طرفدارئِ
۱۸ بي ريا ۱۸ او دَ صداقت ميوه په صلحه کښ دَصلحي کونکو دپارَ کرلي کيږي *

## څلورم باب

۱ ۱ له کومه جنګونه او جګړي په تاسي کښ دِي کنړه له ځايه نه دِي
څه ؟ يعني ستاسي له لذّتونو چه ستاسي په اندامونو کښ جنګيږي
۲ ۲ تاسي طمع کوئِ او نه لرئِ قتل اوحرص کوئِ او هيڅ حاصلولي نه شئِ
۳ تاسي جنګ اوجدل کوئِ او نه لرئِ ځکه چه تاسي سوال نه کوئِ ۳ تاسي
سوال کوئِ او نه مومئِ ځکه چه بد سوال کوئِ تا چه په خپلو لذّتونو
۴ ئې خرڅ کړئِ ۴ اي زانيکو کنړه تاسي نه پوهيږئِ چه دَ دنيا دوستي دَ الله
دُښمني ده نو هر څوک چه غوارِي چه دَ دنيا دوست شِي نوخپل ځان
۵ دَ الله دُښمن کړِي ۵ يا تاسي داګمان کوئِ چه کتاب عبث وايِي چه هغه

٦ روح چه په مونږ کښې اوسي دَ حسد مشتاق دي ٦ بلکه زيات فضل
ورکوي ځکه وايي چه الله دَ مغرورانو مقابله کوي مګر په عاجزانو فضل
٧ کوي ، نو دَ الله تابع شئ له ابليس نه مخالفت کوئ او دي به له تاسي وتښتي
٨ ٨ الله ته نزدي شئ او دي به تاسي ته نژدي شي خپل لاسونه پاک کړئ
٩ اي خطاکارانو خپل زړونه صاف کړئ اي دوه دلانو ٩ غمزده شئ وير او
ژړا کوئ خندا ستاسي دِ په وير او خوشحالي ستاسي دِ په غم بدله شي ۔
١٠ ١٠ دَ خداوند دَ وړاندِ عاجزي کوئ چه دي به مو پورته کړي
١١ ١١ اي ورونړو يو په بل بد مه وائ هغه چه په ورور بد وايي يا
خپل ورور ګرم کوي نو هغه په شرعه بد وايي او شرعه ګرمه کوي او که
١٢ ته شرعه ګرمه کوي نو په شرعي عمل کونکي نه يي بلکه ګرم کونکي ١٢ مقرر
کونکي او ګرم کونکي دَ شرعي يو دَي چه په خلاصولو او په هلاکولو قادر دي
مګر ته څوک يي چه خپل ګاونډي ګرموي
١٣ ١٣ اوس راشئ تاسي چه وائ چه نن ورځ او صبا به هغه ښهر ته
١٤ ځو او هلته به يو کال تير کړو سودا او ګټه به وکړو ١٤ ځکه چه تاسو
هغه يئ چه خبر نه يئ چه صبا به څه وشي ستاسي ژوند څه دي تاسي
١٥ خو يو بخار يئ چه لږ ساعت ظاهريږي او بيا نه ظاهريږي ١٥ په عوض دَ
هغه چه تاسو وائ چه که اراده دَ خداوند وي او مونږ به ژوندي يو
١٦ او دا او هغه به وکړو ١٦ ليکن اوس په خپلي بداي فخر کوئ داسي ټول
١٧ فخرونه بد دي ١٧ پس هغه څوک چه په نيکئ کولو پوهيږي او نه ئي کوي
هغه لره خطا ده ✢

## پنځم باب

١ ١ اوس راشئ اي دولتمندو دَ هغو آفتونو په سبب چه په تاسي راتلونکي
٢ دي په چغو چغو سره ژړا کوئ ٢ ستاسي دولت وروست شوي دَي او
٣ جامي مو وينو خوړلي دي ٣ سره او سپين زر مو زنګونو خوړلي دي او دَ
هغو زنګ به په تاسي باندِ ګواهي لي او دا به ستاسي غوښي وخوري

٤ لکه چه اورٖ تاسي په آخرو ورځو کښې خپله خزانه جمع کړي ده ٤ گوره دَ
هغو مزدورانو مزدوري چه ستاسي پټي ئي وروړل چه تاسي له هغوي
نه پټ کړل فریاد کوي او دَ لوګریو فریادونه دَ ربُّ الافواج غوږونو ته
٥ رسیدلي دي ٥ تاسي په زمکه باندِ عیش او عشرت وکړ او خپلي خوښئ
٦ مو واخستلي او خپل زړونه مو دَ قتل په ورځو کښې وپالل ٦ تاسي په
صادق فتویٰ کړي ده قتل کړي مو دَي له تاسي سره مقابله نه کوي
٧ ٧ نو اي ورونړو دَ خداوند تر راتلو پوري صبر کوئ گوره دهقان دَ
زمکي دَ قیمتي میوي انتظار کوي صبر کونکي په هغه تر هغه پوري چه
٨ ورنبئ او وروستنئ باران ونه موهي ٨ نو تاسي هم صبر کوئ اوخپل زړونه
٩ مضبوط کړئ ځکه چه دَ خداوند راتله نژدي دي ٩ اي ورونړو یو په بله
آه مه کوئ تاچه په تاسي باندِ عدالت ونه شي گوره قاضي په وره
١٠ پوري ولاړ دَي ١٠ اي ورونړو هغه پیغمبران چه دَ خداوند په نوم ئي خبري
١١ کړي دي دَ عذاب زغملو او دَ صبر کولو نمونه ئي واخلئ ١١ گوره مونږ
صابران مبارک گڼړو دَ ایّوب صبر مو اوریدلي دي او دَ خداوند انجام
مو لیدلي دَي چه خداوند نهایت مهربان او رحیم دَي
١٢ ١٢ لیکن له ټولو وړاندي اي زما ورونړو قسم مه خورئ نه په آسمان
نه په زمکه نه په بل قسم سره بلکه ستاسي هو دِ هو وي او ستاسي
نه دِ نه وي تاچه تر عدالت لاندِ پري نه وزئ
١٣ ١٣ څوک چه په تاسي کښې رنځ زغمي دُعا دِ غواړي څوک چه خوشحال
وي حمد دِ وغږوي که څوک په تاسي کښې رنځوران دي بو دَ کلیسي مشران
دِ وبولي او دُعا دِ ورته وکړي او هغوي دِ په نوم دَ خداوند په تیلو
١٥ غوړ کړي ١٥ او هغه دُعا دَ ایمان به رنځور خلاص کړي اوخداوند به
١٦ ئي پورته کړي او که خطا ئي کړي وي ورمعافي به شي ١٦ تاسي په خپلو
خطاؤ ښبله اقرار کوئ او یو دَ بل دَپاره دُعا کوئ تاچه شفا ومومي دَ
١٧ صادق سړي درخواست په خپل عمل کښې ډیر قوّت لري ١٧ الیاس زمونږ په دود

صاحب حواس سړي وه او دُعا ئي وکړه چه باران دِ و نه اوریږي نو دري
١٨ کاله شپږ میاشتي په زمکي باندِ باران و نه اوریده ١٨ او بیا ئي دُعا وکړه
او آسمان باران ورکړ او زمکي خپله میوه وویستله
١٩ ١٩ اي خُما وروڼو که څوک په تاسي کښ له حق نه خطا شِي او
٢٠ څوک ئي بیا راوګرزوي ٢٠ نو هغه دِ پوه شِي چه هر څوک چه یو خطاکار
له ګمراهئِ نه راوګرزوي نو ځان به له مرګ نه خلاص کړي او ډیري
خطائِ به پټي کړي ٭

# اوّل عام خط دَ پطرس رسول

## اوّل باب

۱ پطرس دَ یسوع مسیح رسول هغو مسافرانو ته چه په پنطس او گلاتیه
۲ او کپدوکیه او آسیه او بتونیه کښ خواره واره دِي ۲ او دَ الله پلار دَ
علمِ قدیم په موافق او دَ روح په پاکیزگئ کښ غوره شوِي دِي دَپارَ دَ تابعدارئ
او دَ یسوع مسیح دَ وینو په چنرکاؤ کیدلو فضل او سلامتي دِ په تاسي
باندِ زیات شِي
۳ ۳ هغه الله او پلار خمونږ دَ خداوند یسوع مسیح دِ مبارک وِي
چه ده مونږ دَ خپل لوي رحمت په موافق سره دَ یسوع مسیح دَ ژوندِي
پورته کیدلو په وسیلي له مړیو دَ ژوندِي امید دَپارَ سر دوباره پیدا کړو
۴ ۴ دَپارَ دَ میراث چه نه فنا کیږِي او نه گنده کیږِي او نه مړاوي کیږِي
۵ ساتلي شوي په آسمانونو کښ ستاسي دَپارَ ۵ چه دَ ایمان په وسیلي دَ
الله په قدرت تر هغه بخات پوري چه په آخر وقت ظاهریدلو ته تیار
۶ دَي محفوظ شوِي يئِ ۶ چه په هغه تاسي ډیرِ خوښي کوئِ سره له دي
چه اوس لږِ مُده که ضرور وِي په رنگارنگ ازمایښت سره غمزده يئِ -
۷ ۷ تا چه ستاسي دَ ایمان کره والي چه له فاني سرو زرو اگر که په اور سره
ازمایلي کیږِي زیات قیمتي دَي دَ یسوع مسیح په ظهور کښ دَ مدحي او
۸ دَ جلال او دَ عزّت لایق وموندلي شِي ۸ هغه چه تاسي په نادیده ورسره
محبت کوئِ په هغه چه اوس ئي نه وینئِ نو هم ایمان موِرِ راوړ داسي
خوښي او خوشحالي کوئِ چه بیان ئي نه کیږِي او له جلال نه ډک حاصلوئی
۱۰ دَ انجام دَ ایمان ستاسو یعني دَ ځانونو بخات ۱۰ هغه بخات چه نبیانو
ئي په سعي سره تلاش او تحقیق وکړ هغوي دَ هغه فضل چه تاسي ته
۱۱ راتلونکي وه پیش خبري وکړه ۱۱ چه تلاش ئي کاوه چه دغه کومه او څه زمانه

ده چه روح دَ مسیح په هغې کښې خبر ورکاوه هرکله چه له دردونو دَ مسیح
۱۱ او دَ هغو جلالونو چه ورپسې وُو وړاندِ ئې اشارت کاوه ۱۲ هغو ته دا ظاهره
شوه چه نه دَ خپلو ځانونو دَپارَ بلکه ستاسو دَپارَ ئې په هغو څیزونو خدمت
کاوه چه اوس تاسو برِخبر کړې شوې یئِ دَ هغو په معرفت چه دَ روح القدس
په وسیلې چه له آسمانَ را واستولې شه تاسو ته ئې زیرې دَ انجیل رسولې
دې هغه څیزونه چه فرښتې خواهش لرِي چه و ئې وینې
۱۳ ۱۳ دې دَپارَ دَ خپل ذهن ملا وتړِئ پرهیزکار اوسئِ او دَ هغه فضل
کامل امید لرئِ چه دَ یسوع مسیح په ظهور کښې به تاسې ته درکړې شي
۱۴ ۱۴ لکه فرمان‌بردار فرزندان دَ هغو بدو خواهشونو چه تاسې دَ خپلې نادانئ
۱۵ په وقت کښې لرل خپل ځانونه همشکلَ مه کوئِ ۱۵ بلکه لکه ستاسې بلونکې
۱۶ قُدُّوس دَی تاسې هم په ټول خصلت کښې مُقَدَّس شئِ ۱۶ ځکه چه لیکلې
۱۷ شوې دِي چه تاسې مُقَدَّس شئِ چه زه قُدُّوس یم ۱۷ او که تاسې هغه
پلار بولئِ چه دَ هر یوه دَ عمل په موافق بې‌طرفدارئ حکم کوې نو تاسې دِ
۱۸ خپل وقت دَ سفر په وېرې کښې تېر کړئِ ۱۸ پوهیدونکې شئِ چه تاسو نه
په فانِي څیزونو سره لکه سپین او سره زر په فدیه سره خلاص کړې شوئ
۱۹ له هغه باطله خصلتَ چه له پلارونو مو نیولې دې ۱۹ بلکه په ګران‌بها وینو
۲۰ لکه دَ هغه بې‌عیبه او بې‌داغه برّه یعنې دَ مسیح ۲۰ هغه وړاندِ پېژاندلې
شوې پخوا له بنا کیدلو دَ عالم نه لیکن په آخرو زمانو کښې ستاسو دَپارَ
۲۱ ظاهر شه ۲۱ چه دَده په سبب مو په هغه الله ایمان راوړ چه دې
ئې له مړو پورته کړ او تمجید ئې ورکړ تاچه ستاسې ایمان او امید
۲۲ په الله باندِ وِی ۲۲ تاسو خپل ځانونه په تابعدارئ دَ حق دَ ورورګلوئ
دَ بې‌ریا محبّت دَپارَ پاک کړې دِي نو په زړه سره یو دَ بله ډیره مینه
۲۳ کوئِ ۲۳ چه تاسې نه له فانِي تخم نه بلکه له غیرِ فانِي نه یعنې دَ کلام
۲۴ الله په وسیلې چه ژوندې او باقِي دې سر دوباره پیدا شوې یئِ ۲۴ ځکه چه
ټول بشر لکه واښه

اوَ دَه ټول جلال لکه گل دَ وابنه
هغه وابنه وچیږي
او هغه گل رېژیږي
۲۵ ۲۵ مگر کلام دَ خداوند تر ابده پوري قایم دي
اوَ دا هغه دَ انجیل کلام دي چه تاسي ته زیري کړي شوي وه ✤

# دویم باب

۱ آ پس ټولي بديِ او ټولي ټګيِ او رياکاريِ او کيني او ټول بد ويل لري
۲ کړيِ ۲ دَ نويو پيدا شويو بچيو په شان دَ عقلي پيو چه سُوچه دي مشتاق
۳ شيِ تاچه تاسي هغي نجات ته لوي شيِ ۳ که تاسي دَ دغه خوند اخستي
۴ دي چه خداوند مهربان دَي ۴ تاسي هغه چا ته ورسيدليِ يعني هغه
ژوندي کاڼي ته چه له انسانَ رد شوي وُه مگر دَ الله په نزد غوره شوي
۵ او گران بها دَي ۵ تاسي لکه ژوندي کاڼيِ يو روحاني کور بنا کړي شوي يئِ
او دَ مقدس کوهن والي دَپارَ تاچه روحاني قربانيِ او مقبولي په وسيلي دَ
۶ يسوع مسيح الله ته وړاندِ کړيِ ۶ دي دَپارَ په کتاب کښ راوړي دِي چه
گوره زه په صيحون کښ دَ کوټ کاڼي بږدم چه غوره شوي او گران بها دَي
او هرڅوک چه په دغه ايمان راوړي شرمنده به نه شِي
۷ ۷ نو ستاسو دَپارَ چه ايمان راوړيِ دغه قيمتي شَي دَي ليکن دَ هغو
دَپارَ چه ايمان نه راوړي
هغه کاڼي چه معمارانو رد کړِ
سر دَ کټ شه
۸ ۸ او
هغه دَ تيندک کاڼي او دَ بُدريُ گټه
چه نافرمان بردار شوي له کلام نه تيندک خوريِ هغه کار ته مقرر شوِي
۹ وُو ۹ ليکن تاسي غوره شوي جنس او بادشاهي کوهن والي مُقدّس امّت يِئ
يو قوم دَ ملکيت دَپارَ چه خوبيُ دَ هغه چه تاسو ئي له تياري نه په خپلي

١٠ عجيبي روښنائي کښ را وبللئ بيان کړئ ١٠ تاسو وړاندِ قوم نه وئ مگر اوس
دَ الله قوم يئ په تاسي رحمت نه وه مگر اوس په تاسي رحمت وشه
١١ ١١ اي محبوبانو زه تاسي ته داسي زاري کوم لکه بيگانه وُ او مسافرانو
نه چه له هغو جسماني شهوتونو نه چه له روح سره جنگيږي پرهيز وکړئ
١٢ ١٢ او تاسي خصلت دَ غير قومونو په مينځ کښ نيک لرئ تاچه دوي په هغه
کښ چه تاسي ته دَ بدکارانو په شان بدوايي ستاسي له نيکو عملونو نه چه
دوي ئي ويني دَ بازخواست په ورځ دَ الله تمجيد وکړي
١٣ ١٣ او دَ خداوند دَپارَ دَ ټول انساني انتظام تابع شئ يا بادشاه لره لکه
١۴ چه له ټولو نه پاس دي ١۴ يا حاکمانو لره لکه چه دَده استولي شوي دي
١۵ دَپارَ دَ انتقام اخستو دَ بدکارانو او دَ صفت دَ نيکوکارانو ١۵ ځکه چه اراده
دَ الله داسي ده چه تاسي په نيک کار کولو سره دَ احمقانو سړيو نادانئ بندي
١٦ کړئ ١٦ لکه آزادگان او نه چه خپله آزادي دَ شرارت دَ پټولي په شان
١٧ لرئ بلکه لکه غلامان دَ الله ١٧ دَ ټولو عزت کوئ دَ ورورگلوي محبّت کوئ له الله
نه ويره وکړئ دَ بادشاه عزت کوئ
١٨ ١٨ اي نوکرانو په ټوله ويره سره دَ خپلو خاوندانو تابع اوسئ نه تش دَ
١٩ نيکانو او دَ حليمانو بلکه دَ کږ خويو هم ١٩ ځکه چه دا فضل دي که چرِ څوک
٢٠ الله نه دَ تميز دَپارَ ناحق غم وزغمي ٢٠ ځکه چه څه ناموري ده چه که تاسي
خطاکاران شوي څپيړي خوروکي صبر کوئ ليکن که تاسي نيکوکاران شوي
٢١ درد زغمونکي صبر کوئ نو دا دَ الله په نزد فضل دي ٢١ ځکه چه تاسي دي
دَپارَ بللي شوي يئ ولي چه مسيح ستاسو دَپارَ دَ درد زغم وکړ تاسو ته
٢٢ نمونه پريښونکي شه تاچه تاسي دَده په پلونو پيروي وکړئ ٢٢ هغه چه هيڅ
٢٣ خطائ و نه کړه او نه دَده په خولي کښ مکر موندلي شه ٢٣ هغه چه
وښکنځلي شه او ښکنځل ئي په بدله کښ نه کول اوچه وډردولي شه نو ډرکي
ئي نه کولي بلکه ځان ئي هغه ته وسپاره چه په راستئ سره انصاف کوي
٢۴ ٢۴ او هغه په خپله څمونږ خطائ په خپلي جسّي کښ په صليب واخستلي تا

چه موږ له خطاؤ مړه شُو صداقت ته ژوندِي شُو دَ ده په وهلو مو
شفا بياموندده ځکه چه تاسي دَ ورکو شويو ګډورو په شان وئِ مګر اوس
تاسي دَخپلو ځانونو دَ شپانه او دَ نګهبان په لورِي ګرزيدلي يئِ *

## دريم باب

۱ آ په دي شان سره اي ښځو دَخپلو ميړونو تابعداري شئِ اګر که ځني
کلام هم نه منِي بي له کلام نه دَ ښځو په خوي سره يُ ګټلي شِي ستاسي
۳ پاک خوي چه له ويري سره دَي ووينِي ۳ او ستاسي دِ ظاهِرِي سنګار
دَ وِيښتو په اودَلو او په سرو زرو آراسته کيدلو يا په جامو اغوستلو نه
۴ وِي ۴ بلکه په پټ انسانيت دَ زړه په غير فانِي زينت دَ حليمئِ او آرام دَ
۵ روح چه دا دَ الله دَ وړاندِ بيش‌قيمته دَي ۵ ځکه چه په دي شان سره هم
پاکو ښځوچه په الله يُ اميد لاره خپل ځانونه يُ سنګار کول او تابعداري
۶ دَخپلو سړيو وي ۶ لکه چه ساري دَ ابراهام تابعدارِي کوله او ده ته به يُ
خاوند وايه او تاسي دَهغي لُونړه شولئِ که نيک‌عمله يئِ او له هيبت نه
ويرولِي شوِي نه يئِ

۷ ۷ هم هسي اي سړيو په دانائِي سره له خپلو ښځو سره لکه نازک لوښي اوسئِ
او عزّت ورکوئِ لکه وارثان هم دَ ژوندانه دَ نعمت يُ تاچه ستاسي دُعا قطع نه شئِ
۸ ۸ غرض دا دَي چه تاسي ټول واړه هم‌فکر او هم‌درد شئِ دَ ورورګلوي
۹ مينه کونکي او زړه‌سوان او خاکساران اوسئِ ۹ نه بدله ورکونکي دَ بدئِ په بدئِ
سره يا ښکنځل په عوض دَ ښکنځلو بلکه په برعکس مبارک ويونکي ځکه چه تاسي
۱۰ دي دَپارَ بللِي شوِي يئِ تاچه دَ برکت وراثت واخلئِ ۱۰ ځکه

هغه څوک چه اراده دَ محبت دَ ژوندانه او دَ ښو ليدلو لري
نو ژبه دِ له بدئِ نه تم کړي
او خپلي شونډي دِ دَ ټګي له خبرو نه

۱۱ ۱۱ له بدئِ نه دِ په ډډه شِي او نيکي دِ وکړِي صلحه دِ ولټوِي او ورپسي
۱۲ دِ شِي ۱۲ ځکه چه

دَ خداوند سترګي په صادقانو باندِ دِي
او دَ ده غوږونه دَ هغو په زاريو
مګر مخ دَ خداوند په خلاف دَ بدِي کونکو دَي
١٣ ١٣ او څوک به تاسي ته ضرر ورسوِي که تاسي دَ نيکئ دَپارَ غيرتناک شئِ
١٤ ١٤ ليکن که دَ صداقت په سبب و دردولي شئِ نو مبارک يئِ نو دَ هغو له وِيرِي
١٥ مه وِيرِيږئِ او مه ترسيږئِ ١٥ مګر مسيح خداوند لره په خپلو زړونو کښ
تَقدِيس وکړئِ دَ ځواب ورکولو دَپارَ مدام تيار اوسئِ هر يوه ته چه له تاسي
نه دَ هغه اميد په باب چه په تاسي کښ دَي پوښتنه وکړي په نرمئِ او په
١٦ وِيرِه سره ١٦ او تميز نيک لرئِ تاچه په هغي خبري کښ چه ستاسو په خلاف
وېلَي شِي هغوي چه ستاسي نيک خوي ته چه په مسيح کښ دَي لعنت
١٧ کوِي شرمنده به شِي ١٧ ځکه چه دا بهتره ده که اراده دَ الله داسي اراده
لرِي چه تاسي نيکِي کونکي و دردولي شئِ په نسبت دَ بد کونکو .
١٨ ١٨ ځکه چه مسيح هم يو وار دَ خطاؤ دَپارَ يعني صادق دَ ناصادقانو
دَپارَ درد وزغامه تاچه مونږ الله ته ورسوِي ځکه چه دي وژلي شوي په
١٩ جُسّي کښ ليکن ژوندي شوي په روح کښ دَي ١٩ او هم په دي کښ لاړ او
٢٠ هغو ارواحونو ته چه په قيدخانې کښ وُو وعظ ئي وکړ ٢٠ چه وړاندِ نافرمانه
وُو هغه وقت چه دَ الله صبر دَ نوح په ورځو کښ چه بيړئِ جوړيدله انتظار
ئي کاوه چه په هغي کښ لږڅه يعني اته تنه له اوبو نه خلاص شول -
٢١ ٢١ چه دا هم دَ رښتني مثال په شان يعني بپتسما اوس تاسو ته نجات درکوِي
چه نه دَ جسماني خِيَري لرِي کول بلکه دَ نيک تميز سوال کول دَ الله په لوري په وسِيلي
٢٢ دَ پورته کيدلو دَ يسوع مسيح ٢٢ هغه چه دَ الله په ښي لاس دَي آسمان
ته لاړ شه او فرښتي او حکومتونه او قدرتونه دَده تابعدارکړِي شوِي دِي ٭

## څلورم باب

١ ١ نو هرکله چه مسيح په جُسّي کښ درد وزغامه تاسي هم په هغه نيّت وسله
وتړئِ ځکه هغه چاچه په جُسّي کښ درد زغملي دي له خطاؤ تم شوِي دَي

۲ تا چه بیا خپل باقي وقت په جُسّي کښن دَ انساني شهوتونو په موافق نه بلکه ۲
دَ الله په ارادي کښن ژوندون تیر کړي ۳ ځکه چه تیر شوي وقت بس دي ۳
په مرضئ دَ غیر قومونو دَپارَ دَ عمل کولو چه موږ تلونکي وُو په فسق
او په شهوتونو او په شراب خورئ او په رندیو او بد مستیو او په
حرامه بت پرستئ کښن ۴ داخبري هغوی بیګانه ګڼړي چه تاسي ورسره ۴
تړ هغي فضولئِ عیّاشئ پوري نه زغلئِ او کفر ویونکي دِي ۵ لیکن دوي ۵
به هغه ته چه دَ ژوندیو او دَ مړیو انصاف کولو ته تیار دَي حساب
ورکړي ۶ چه دَ دي دَپارَ مړو ته هم انجیل ورکړي شوي وه تا چه دَ ۶
سړیو په شان دَ جُسي په نسبت عدالت بیاموي لیکن دَ الله دَپار په
روح کښن ژوندون وکړئ
۷ لیکن دَ ټولو څیزونو اخر نژدي دَي نو هوښیار شئ او دُعاؤ ته ۷
بیدار اوسئِ ۸ له ټولو وړاندِ په خپل مینځ کښن ډیره مینه کوئ ځکه چه ۸
محبّت ډیروالي دَ خطاؤ پټوي ۹ یو بل لره بي ګونګسي میلمستیا کونکي شئِ ۹
۱۰ هر یو دِ په موافق دَ هغه نعمت چه اخستلئ دَي په خدمت دَ یو دَ ۱۰
بل دِ يئ خرڅ کړي په مثل دَ نیکو ناظرانو دَ رنګارنګ فضل دَ الله ۱۱ که ۱۱
څوک خبري کوِي دَ الله دَ کلام په موافق دِ کوي او که څوک خدمت کوِي
نو لکه له هغه قدرت نه چه الله يئ ورعنایت کوي تا چه په ټولو څیزونو
کښن الله لره دَ یسوع په وسیلي تمجید وشيِ چه ده لره دِ تمجید او قدرت
تر ابد الاباده پوري وِي آمین
۱۲ اي محبوبانو تاسي په هغه آتشي آزمایښت چه ستاسو دَ آزمائلو ۱۲
دَپارَ په تاسي راځي تعجب مه کوئ لکه چه په تاسي عجب حال واقع شوي دَي
۱۳ بلکه دومره چه تاسي دَ مسیح په دردونو کښن شریک يئِ خوښي کوئ تا ۱۳
چه دَده دَ جلال دَ ښکاره کیدلو په وقت په ډیر سخ سره خوشحال شئِ-
۱۴ که چري دَ مسیح دَ نامه په سبب ښکنځلي شئِ نو تاسي مبارک يئِ ځکه ۱۴
چه دَ جلال او دَ الله روح په تاسي باندِ ساکن کیږي ۱۵ هیڅ یو دِ له تاسو ۱۵

نه دَ خوني يا دَ غله يا دَ بدكار يا دَ نورو په كارونو كښ، دَ لاس اچونكي په
۱۶ شان عذاب بيا نه مومي ۱۶ ليكن كه دَ مسيحي غوندِ نو دِ نه شرميږي بلكه په
۱۷ دي نُوم دِ دَ الله تمجيد وكړي ۱۷ څكه چه وقت دَي چه دَ الله له كور نه
عدالت شروع شي نو كه شروع دَ هغه له مونږ نه وي نو آخر دَ هغو
۱۸ كسانو چه انجيل دَ الله نه مني څه به شي ۱۸ او كه صادقان په سختيَ
۱۹ سره نجات مومي نو بي دينَ او خطاكار به چرته ښكاره شي ۱۹ نو هغوي چه
دَ الله دَ ارادي په موافق درد زغمي نو خپل ځانونه دِ په نيك عملِ سره ده
ته وسپاري لكه خالقُ الامين ته ✣

# پنځم باب

۱ ۱ زه هغو سپين ږيريو ته چه ستاسي په مينځ كښ دي مِنّت كوم چه زه هم
سپين ږيري يم او دَ مسيح په دردونو شاهد او دَ هغه جلال چه ښكاره
۲ به شي شريك يم ۲ هغه رمه دَ الله چه ستاسي په مينځ كښ ده وئي څروئ
او نگهباني ئي كوئِ نه په زور بلكه په رضا سره لكه دَ الله دَپارَ او نه دَ ناروا
۳ نفعي دَپارَ بلكه په رغبت سره ۳ او نه لكه چه په ميراث خداوندي كوئِ بلكه
۴ دَ رمي دَپارَ نمونه شئِ ۴ نو چه سردار شپون ظاهر شي نو تاسو به دَ جلال نامراوئ
۵ تاج ومومئِ ۵ په دي شان سره اي ځوانانو دَ سپين ږيريو تابع شئِ ټول واړه يو
دَ بل په خاكسارئِ سره پوشيده شئِ څكه چه الله له متكبرانو سره مقابله
۶ كوي مگر خاكسارانو ته فضل وركوي ۶ نو دَ الله تر زوراور لاس لاندِ خاكساران
۷ شئِ تا چه دي مو په معيّن وقت كښ سرفراز كاندِ ۷ او خپله ټوله انديښنه
۸ په ده واچوئِ څكه چه دَده سره ستاسو پروا ده ۸ پرهيزگار او بيدار اوسئِ
څكه چه ستاسو دُښمن ابليس دَ غريدونكي زمري په شان گرزي لټونكي چه
۹ څوك ونغري ۹ نو په ايمان كښ مضبوط شئِ چه ورسره مقابله وكړئِ په دي
۱۰ پوه شئِ چه هم دا دردونه په عالم كښ ستاسي په ورونړو تير شوي دي ۱۰ او
دَ ټول فضل دَ الله چه تاسو ئي ابدي جلال خپل ته په مسيح كښ بللي يئِ په
خپله به تاسو پس له لږِ درد زغملو نه كامل او مضبوط او زوراور كړي -

١١ ده لره دِ حکومت ابدالاباد وِي آمین ١١
١٢ په لاس دَ سلوانس چه زه يې امانتدار ورور گنړم تاسو ته مې لږ ١٢
څه وليکل او منّت کونکې او شاهدِي ورکونکې چه دا هغه رښتيني فضل دَ
الله ذي په دغه کښې ټينګ اوسئ ١٣ هغه غوره شوي چه په بابل کښې ١٣
له تاسو سره دِي او څـــما زوي مرقس په تاسو باندِ سلام وايي
تاسو يو بل ته دَ محبت په ښکلولو سلام کوئ ١٤
تاسي ټولو ته چه په مسيح کښې يئ سلامتي دِ وي ❊

# دویم عام خط دَ پطرس

## اوّل باب

١ شمعون پطرس غلام دَ يسوع مسيح او رسول هغو ته چه ځمونږ دَالله او ١
خلاصونکي مسيح په صداقت کښې له مونږ سره قيمتي ايمان يې برابر موندلی
دي ٢ دَ الله او ځمونږ دَ خداوند يسوع مسيح په معرفت دِ فضل او سلامتي ٢
تاسي لره زيات شي ٣ لکه چه دَده الٰهي قدرت مونږ ته ټول څيزونه دَ ٣
ژوندانه او دَ تقوىٰ راښخښلي دِي دَ هغه په معرفت چه مونږ يې په خپل جلال
او نيکئ سره بللي يو ٤ چه دَ هغو په وسيلي قيمتي او نهايتي لويې وعدي ٤
را ونخښلي شوي تاچه تاسي دَ هغو په وسيلي دَ طبيعتِ الٰهي شريکان
شئ له هغي گندگئ نه چه په عالم کښې دَ بد شهوت په سبب ده تښتيدونکي
شئ ٥ نو دي دَپاره کامل کوشش وکړئ په خپل ايمان کښې نيکي او په نيکي ٥
کښې معرفت ٦ او په معرفت کښې پرهيزکاري او په پرهيزکاري کښې صبر او ٦
په صبر کښې تقوىٰ ٧ او په تقوىٰ کښې دَ ورورکلوي مينه او دَ ورورکلوي ٧
په مينه کښې محبّت زيات کړي ٨ نو که دا څيزونه په تاسي کښې وِي او ٨
زياتيږي نو تاسي به نه سُست او نه بې ميوي کړي شوي ځمونږ دَ خداوند
يسوع دَ معرفت دَپاره ٩ مگر هغه څوک چه دا څيزونه نشته هغه ړوند او ٩

۱۰ کم نظري دَي او دَ خپلو زړونو دَ خطاو پاکوالي ئي هیر کړي دَي ۱۰ اي وروړو
زیات کوشش وکړئ چه خپله بلنه او غوره توب ثابت کړئ ځکه چه که تاسي
۱۱ دا ځیزونه وکړئ نو هیڅکله به تیندکونه و نه خورئ ۱۱ ځکه چه دا هسي به
تاسي ته ځموږ دَ خداوند او دَ خلاصونکي یسوع مسیح په ابدي بادشاهي
کښ اَرت دخل درکړي شي
۱۲ ۱۲ دي دَپاره به زه مدام تیار اوسم چه دغه خبري دریادوم که اگر
۱۳ تاسي پوهیږئ او په هغي رښتنيئ کښ چه تاسو ځنه ده ټینګ يئ ۱۳ بیا زه
دا حق ګڼړم چه څو چه زه په دي خیمي کښ یم تاسو به په یادولو سره لمسوم
۱۴ ۱۴ په دي پوهیږم چه ځما دَ خیمي دَپریښتلو وقت زر راځي لکه چه ځموږ
۱۵ خداوند یسوع مسیح ما لره ظاهر کړي دي ۱۵ هو زه به کوشش کوم چه
۱۶ تاسي ځما له کوچ کولو نه پس دا ځیزونه هر وقت په یاد راوړئ ۱۶ ځکه چه
موږ دَ جیلي جوړ شویو نقلونو پیروي کړي نه ده چه موږ تاسو دَ خپل
خداوند یسوع مسیح په قدرت او په ظهور وپوهولئ بلکه موږ دَده دَ بزرګي
۱۷ ځیر کوونکي وُو ۱۷ چه ده له الله پلار نه عزت اوجلال و موندل هغه وقت
چه له جلالِ اعلیٰ نه داسي آواز ور ورسید چه دغه ځما محبوب زوي دي
۱۸ چه زه ورنه خوشحال یم ۱۸ او موږ چه له ده سره په پاک غره باندِ وُو
۱۹ دا آواز له آسمانه رانښکته کیدونکي مو واوریده ۱۹ او نبوتي کلام زیات
محکم لرو او تاسي ښه کوئ چه دغه ته ملاحظه کوئ لکه ځلیدونکي
ډیوه په تاریک ځاي کښ تر هغه پوري چه سپیدي وچوي او دَ صباح
۲۰ ستوري ستاسي په زړونو کښ وخیژي ۲۰ له ټولو وړاندِ پوه شئ چه هیڅ
۲۱ نبوتي کتاب له خاصه تفسیره نه کیږي ۲۱ ځکه چه هیڅ نبوت هیڅري
په اراده دَ سړي نازل شوي نه دَي بلکه سړیو په رُوحُ القُدُس بیولي
شوي له الله نه خبري وکړي ✣

## دویم باب

۱ ۱ لیکن په هغه قوم کښ دروغژن پیغمبران هم ډیر وُو لکه چه په

تاسي کښې به هم دروغژن استاذان وِي چه هلاکونکي بدعتونه به په پټه
سره در ننه باسِي او له هغه خداوند نه چه دوي ئې پېرودلي دي اِنکار
۲ به وکړِي او په خپلو ځانونو به تُند هلاکت راولي ۲ او ډېر به دَ هغو دَ فاسِقيُّو
۳ پېروِي وکړِي چه دَ هغو په سبب به په حقي لارې کفر وېلي شي ۳ او په
طمع کښې به په پستو خبرو سره ستاسي سوداګري کوِي ليکن دَ دوي عدالت
له قديمي مُدې نه سُستي نه کوِي او دَ دوي هلاکت خوبيدلي نه دَي-
۴ ۴ ځکه چه که الله په هغو فرښتو چه خطا ئې وکړه شفقت ونه کړ بلکه
دَ تياري په دوغلونو کښې تهترين‌ته ئې وسپارلي تاچه دَ عدالت دَپارَ ساتلي
۵ شوي وِي ۵ او په وړاندني عالم ئې شفقت ونه کړ بلکه اَتم نوح دَ صداقت
۶ واعظ ئې وساته چه طوفان ئې دَ بې‌دينۍ په عالم راوست ۶ او دَ سَدوم
او دَ عموراه ښهرونه ئې اِيرې اِيرې کړل په اُرولو سره ئې حکم وکړ او دوي
۷ ئې دَ آينده بې‌دينو دَپارَ عبرت جوړ کړل ۷ او صادق لوط چه دَ بې‌دِينانو
۸ دَ فسق له خوي نه آزرده وه خلاص ئې کړ ۸ ځکه چه هغه صادق په هغو
کښې اوسيدونکي په ليدلو او په اوريدلو دَ دوي دَ بې‌شرعي عملونو ئې ورځ
۹ په ورځ خپل صادق روح په عذاب لاره ۹ هغه خداوند پوهيږي چه
تقویٰ‌داران له آزماينښت نه خلاصوِي او ظالمان دَ عدالت تر ورځې پورې
۱۰ بنديوان ساتي ۱۰ خاص هغوي چه په ګنده شهوت کښې دَ جِسم پېروِي
کوِي او حکومت ناچيز ګڼِي لوندان او خودپسندان او دَ عزتمندو له
۱۱ تهمت لګولو نه نه لړزيږي ۱۱ اګر که فرښتي چه په زور او په قدرت کښې
۱۲ لوي دِي دَ خداوند دَ وړاندِ په هغو باندِ دَ تُهمت حکم نه کوِي ۱۲ ليکن
دوي دَ ذاتي بې‌زبانو حيوانانو په شان چه دَ ښکار او دَ هلاکت دَپارَ پيدا
شوِي دِي په هغو څيزونو چه دوي ناخبره دِي تُهمت لګوِي او په خپل هلاکت
۱۳ کښې به هلاک شي ۱۳ له ناراستۍ کولو به دَ ناراستۍ اجر مومِي چه دَ ورځې
مستي کول لذّت ګڼِي داغونه او عيبونه دِي او له تاسي سره چه په
۱۴ ميلمستيا کښې خوري مستي کوِي ۱۴ سترګې له زنا ډکې لرِي چه له خطا

نه ستنيږي او بي پايه کسان غولوي غښتلي زړه په طمعي کښې لري دَ لعنت
۱۵ فرزندان ۱۵ سمَ لار يې پرېښې دَه گمراه شوي دي او دَ بَعُور دَ زوي دَ بلعام
۱۶ په لاري روان شوي دي هغه چه دَ ناراستئ په مزدوريئ يې مينه وکړه ۱۶ ليکن
په خپلي بي شرعئ يې گرموالي بيامونډ چه بي زبانه خر دَ سړي په ژبه گويا شه
۱۷ او دَ هغه پيغمبر ليونتوب يې منع کړه ۱۷ دوي بي اوبو چيني دي او لري چه
۱۸ سيلئ يې زغلوي دَ هغو دَ پارَ توره تياره ساتلي شوي دَه ۱۸ ځکه چه دوي دَ
بطلان په لافو زيدونکي په جسماني شهوتونو سره په فاسقيتو کښې نښلوي
۱۹ هغوي چه دَ گمراهئ له گرزيدونکيو لږ څه تښتيدلي وُو ۱۹ له هغوي سره
دَ آزادگئ وعده کوي ليکن په خپله دَ مرداريئ مريونه دي ځکه هغه څه
۲۰ چه څوک تر لاندي شوي وي دَ هغه غلام شوي وي ۲۰ اگر که هغوي دَ خداوند
او دَ خلاصونکي يسوع مسيح په معرفت دَ عالم له آلودگيو وتښتيدل او بيا
بل وار په کښې ونښلي مغلوب شي آخر حالونه يې له اولو زيات بد شي -
۲۱ ۲۱ ځکه چه دُ هغو دَ پارَ د صداقت لار نه پيژاندنه غوره وه - له دي نه چه
پس له پيژاندلو دَ هغه پاک حکم چه دوي ته وسپارلي شه را وگرزي نو
وښتني متل په دوي باندِ واقع شه چه سپَي دَ خپل قي په لوري گرزيدلي
دَي او وينځلي سرکوزي دَ چکړو ورغړيدني ته +

## دريم باب

۱ ۱ اي محبوبانو تاسو ته اوس دا دويم خط درليږم او په دواړو کښې زه
۲ ستاسي پاکيزه ذهن په يادولو سره لمسوم ۲ تا چه تاسي يادي کړئ هغه
۳ خبري چه په معرفت دَ پاکو نبيانو په خوا ويلي شوي وَي ۳ او دَ خداوند
او دَ خلاصونکي حکم چه ستاسي په رسولانو ورکړي شه اول دا وپيژنئ چه
به آخرو ورځو کښې به ټوقماران له ټوقو سره راشي چه دَ خپلو شهوتونو
۴ په موافق به گرزي ۴ او وبه وايي چه دَدَه دَ راتلو وعده چرته ده ځکه چه
له هغه وقت نه چه پلرونه اوده شول هر څه هسي پاتي دي لکه چه دَ
۵ پيدايښت په شروع کښې وُو ۵ ځکه چه دوي په قصد سره دغه پټوي چه

آسمانونه له قدیمه وُو او دَ الله په کلام سره زمکه له اوبو او په اوبو کښ
۶ سره ودرولي شوه ۶ چه له دوي نه هغه چه دَ هغه عالم وه هلاک شول
۷ ۷ مګر اوسني آسمانونه او زمکه هم په دغه کلام سره اور ته ذخیره کړي
شوي او دَ بي دینو دَ عدالت او دَ هلاکت تر ورځي پوري ساتلي شوي دي
۸ ۸ او اي محبوبانو دا یوه خبره دِ له تاسي پټه نه وي چه دَ خداوند
۹ په نزد یوه ورځ لکه زرکاله او زرکاله لکه یوه ورځ دي ۹ خداوند په
خپلو وعدو کښ ډیل نه کوي لکه چه ځني يې ډیل ګڼي بلکه تاسو ته اوږد
صبر کوي او نه غواړي چه څوک هلاک شي بلکه دا چه ټول توبي ته رجوع
۱۰ وکړي ۱۰ لیکن دَ خداوند ورځ به لکه دَ غلهٔ هسي راشي چه په کښ به آسمانونه
په غړنګ سره تیر شي او عنصرونه به سیزلي شوي او ویلي به شي او زمکه
۱۱ او کاریګرئ چه په کښ دي وبه سیزلي شي ۱۱ نو هرکله چه دا ټول څیزونه
ویلي کیدونکي دي نو څرنګ کسان بایده دي چه تاسي شئ په پاک خوي
۱۲ او په تقویٰ کښ ۱۲ کتونکي او په شوق سره انتظار کونکي دَ راتلو دَ ورځي دَ
الله چه په هغي کښ به آسمانونه سیزلي شوي او ویلي شوي او عنصرونه
۱۳ به په جوش ویلي شي ۱۳ لیکن مونږ دَده دَ وعدي په موافق دَ نویو آسمانونو
او دَ نوي زمکي چه صداقت په کښ اوسي انتظار کوو
۱۴ ۱۴ دي دَپارَ اي محبوبانو هرکله چه تاسي دَدي څیزونو انتظار کونکي
يئ کوشش کوئ چه بيداغه او بيعیبه دَده په حضور په صلح کښ و
۱۵ مونده‌لي شئ ۱۵ او ځمونږ دَ خداوند اوږد صبر نجات وګڼئ لکه چه
ځمونږ محبوب ورور پولس هم دَ هغه حکمت په موافق چه ده ته ورکړي
۱۶ شوي دي تاسو ته ولیکل ۱۶ لکه چه په ټولو خطونو کښ دَدي څیزونو
په باب کښ ذکر کوي چه په کښ ځني څیزونه دي چه پوهیدل يې ګران
دي چه جاهلان او بي ټیکانړي خلق يې دَ نورو پاکو کتابونو په شان
دَ خپل هلاکت دَپارَ کږوي
۱۷ ۱۷ نو اي محبوبانو تاسي وړاندِ په دي پوه شئ خبردار شئ هسي نه وي

چه دَ بدانو دَ بدیٔ په لوري وښکولي شئ له خپلي محکمیٔ نه پریوزیٔ بلکه په
فضل او په معرفت څمونږ دَ خداوند او خلاصونکي یسوع مسیح کښ لوي
شئ هغه لره دِ جلال اوس او تر ابدي ورځي پوري وِي آمین ❊

# اوّل عام خط دَ یوحنّا رسول

## اوّل باب

۱ ۱ هغه څه چه له ابتدا ؤُ هغه څه چه مونږ اوریدلي دِي هغه څه چه
په خپلو سترګو مو لیدلي دِي هغه څه چه مونږ څِیر کړي دِي او لاسونه
۲ مو پري وهلي دِي دَ ژوندانه دَ کلمي په باب ۲ او هغه ژوندون ښکاره کړي
شه او مونږ لیدلي دَي او شاهِدي پرِ کوُو او تاسو ته خبر درکوُو په هغه
۳ ابدِي ژوند چه پلار څخه وه او په مونږ باندِ ښکاره شه ۳ هغه څه چه مونږ
لیدلي او اوریدلي دِي تاسو هم پرِ خبرَوُو تاچه تاسي هم له مونږ سره شراکت
وکړیٔ او څمونږ شراکت له پلار سره او دَده دَ زوي یسوع مسیح سره دَي
۴ ۴ او مونږ دا خبري تاسو ته لیکو تاچه ستاسي خوښي کامله شي
۵ ۵ او دا دي هغه انجیل چه مونږ له ده نه اوریدلي وه او تاسي پري
۶ خبرَوُو چه الله نوُر دَي او په ده کښ هیڅ تیاره نشته ۶ که مونږ ووایوُ چه
مونږ ورسره شراکت لرُو او په تیاري کښ ځُو نو مونږ دروغ وایوُ او په
۷ حق عمل نه کوو ۷ لیکن که مونږ په نور کښ ګرزو لکه چه دي په نوُر
کښ دَي نو مونږ یو له بل سره شراکت لرُو او وینې دَده دَ زوي یسوع مو
۸ له ټولو خطاؤ نه پاکوِي ۸ که مونږ ووایوُ چه خطا نه لرُو نو خپل ځانونه
۹ غولوُو او په مونږ کښ حق نشته ۹ که مونږ دَ خپلو خطاؤ اقرار وکړُو
نو دَي آمِین او صادق دَي تاچه څمونږ خطاوي عفوه کړي او له ټولو ناراستیو
۱۰ مو پاک کړي ۱۰ که ووایوُ چه مونږ خطا کړي نه ده نو مونږ دي دروغژن کوُو
او دَده کلام په مونږ کښ نشته ✣

# دويم باب

١ آ اي ځما فرزندانو دا خبري تاسي ته ليکم تا چه تاسي خطا و نه کړئ او
٢ که څوک خطا وکړي نو يسوع مسيح صادق پلار ځخه شفاعت کونکي لرو ٢ او
دي ځمونږ دَ خطاؤ دپارَ کفاره دَي او نه تش ځمونږ دپارَ بلکه دَ ټول عالم
٣ دپارَ هم ٣ او په دي پوهيږو چه دي مو پيژاندلي دَي که مونږ دَده حکمونه
٤ وساتو ٤ هغه چه وايي چه دي مِ پيژاندلي دَي او دَده حکمونه نه ساتي
٥ دروغژن دَي او په هغه کښ هغه حق نشته ٥ مگر هغه چه دَده کلام ساتي
په حق سره دَ الله محبّت په ده کښ کامل شوي دي مونږ په دي پوهيږو چه
٦ په ده کښ يُو ٦ هغه چه وايي چه زه په ده کښ اوسم بايده دِي لکه چه دَي
وگرزيده هم هسي دي وگرزي
٧ ٧ اي محبوبانو زه تاسي ته نوي حکم نه ليکم بلکه هغه قديمي حکم
چه له ابتدا نه تاسو ځخه وه هغه قديم حکم هغه کلام دَي چه تاسي واوريده
٨ ٨ بيا زه نوي حکم درليکم چه په ده کښ او په تاسي کښ حق دي ځکه چه
٩ تياره په تيردلو کښ ده او حقيقي نُور اوس ځليږي ٩ هغه څوک چه وايي چه
زه په نُور کښ يم او له خپل ورور سره کينه لري لا تر اوسَ پوري په تياري
١٠ کښ دَي ١٠ هغه څوک چه له خپل ورور سره محبت کوي په نُور کښ اوسي او
١١ په دغه کښ تيندک نشته ١١ ليکن هغه څوک چه له خپل ورور سره کينه
کوي په تياره کښ دَي او په تياره کښ گرزي او نه پوهيږي چه چرته ځي ځکه
چه تياري دَده ستړگي ړندي کړي دي
١٢ ١٢ اي فرزندانو زه تاسي ته ليکم ځکه چه ستاسي خطاوي دَده دَ نُوم
١٣ په خاطر دربخښلي شوي دِي ١٣ اي پلرونو زه تاسي ته ليکم ځکه هغه څوک
چه له ابتدا دي تاسي ئي پيژنئِ اي ځوانانو تاسي ته ليکم ځکه چه تاسي په
شرير باندِ بري موندلي دَي تاسو ته مِ ليکلي دِي اي وړوکيو ځکه چه پلار مو
١٤ پيژاندلي دي ١٤ تاسي ته مِ اي پلرونو وليکل ځکه هغه چه له ابتدا دي تاسي

پيژاندلي دَي تاسي ته مِ وليکل اي ځوانانو ځکه چه قوّتناک يئ او کلام دَ
۱۵ الله په تاسي کښ اوسي او په شرير مو بري موندلي دي ۱۵ له دنيا سره
مينه مه کوئِ او نه له هغو څيزونو سره چه په دنيا کښ دِي که څوک له
۱۶ دنيا سره محبّت کوي په هغه دَ پلار محبّت نشته ۱۶ ځکه هرڅوک چه په
دنيا کښ دِي يعني شهوتونه دَ جسّي او شهوتونه دَ سترګو او دَ ژوندانه
۱۷ مغروري له پلاره نه دِي بلکه له دنيا نه دِي ۱۷ او دنيا او دَدي شهوت
تيريږي ليکن هغه چه دَ الله په اراده کوي تر ابدَ پوري پاتي کيږي
۱۸ ۱۸ اي وړوکيو آخر ساعت دَي او لکه چه تاسي اوريدلي دِي چه
دجّالُ المَسِيح راځي نو اوس هم دجّالان دَ مسيح ډير شوي دِي له دي نه مونږ
۱۹ پوهيږو چه اخر ساعت دَي ۱۹ څمونږ له مينځ نه ووتل مګر له مونږ نه نه وُوْ
ځکه چه که دوي څمونږ وَي نو له مونږ سره به پاتي وُوْ ليکن دوي ووتل
۲۰ تاچه ظاهر کړي شي چه هغوي ټول له مونږ نه نه دِي ۲۰ او تاسي له هغه
۲۱ قدّوس نه مسحه لرئِ او په هرڅه پوهيږئِ ۲۱ ما تاسي ته و نه ليکل
چه تاسي حق نه پيژنئِ بلکه ځکه چه تاسي ئي پيژنئِ او دا چه هيڅ دروغ له
۲۲ حق نه نه دِي ۲۲ څوک دروغژن دِي مګر هغه چه انکار کوي چه يسوع هغه
مسيح دي هغه دَجّالُ المسيح دَي چه له پلار او له زوي نه انکار کوي
۲۳ ۲۳ هرڅوک چه له زوي نه انکار کوي پلار هم نه لري او هغه څوک چه
۲۴ په زوي اقرار کوي پلار هم لري ۲۴ نو هرڅه چه تاسي له ابتدا نه اوريدلي
دِي په تاسي کښ پاتي شِي که هغه څه چه تاسي له ابتدا نه اوريدلي دِي
په تاسي کښ پاتي شي نو تاسي به هم په زوي او په پلار کښ پاتي شئِ
۲۵ ۲۵ او دا هغه وعده ده چه له مونږ سره ئي وعده کړي ده يعني ابدي ژوندون
۲۶ ۲۷ ۲۶ دا مِ تاسو ته دَ هغو په باب ليکلي دِي چه تاسي غولوي ۲۷ او هغه
مسحه چه له دَهٔ نه مو واخستله په تاسي کښ وپاتيږي او تاسي دَ دي
حاجت نه لرئِ چه څوک تاسو ته درزده کوي بلکه لکه چه دَ ده مسحه تاسي
ته ټول څيزونه درزده کوي او حقه ده او دروغ نه ده او لکه څرنګ چه

ده تاسي ته زده کړه هم هسي په هغه کښ اوسيږ ۲۸ او اوس اي فرزندانو ۲۸
په هغه کښ وپائيږئ دي دَپارَ چه که دَي ظاهر شِي نو مونږ به دَ ويلو
واک لرو او دَ ده په راتلو کښ به ترِ شرمنده نه شُو ۲۹ که تاسو عالم يئ ۲۹
چه دي صادق دَي نو پوهيږئ چه هرڅوک چه دَ صداقت عمل کوِي له
ده نه پيدا شوي دَي ٭

# دريم باب

آ گورئ چه پلار له مونږ سره څرنګ محبّت کړي دَي چه مونږ فرزندان دَ ۱
الله بللي شُو او مونږ له دي سبب دنيا ونه پيژاندلو چه دي ئي ونه پيژاند
۲ اي محبوبانو اوس مونږ فرزندان دَ الله يُو او لا تر اوسَ پوري دا ۲
ظاهره شوي نه ده چه څه به شُو ليکن مونږ پوهيږُو چه هرکله چه
دَي ظاهر شِي نو مونږ به دَده په شان شُو ځکه چه مونږ به دَي لکه چه
دَي هسي ووينو ۳ او هرڅوک چه دا اميد په ده لرِي هغه خپل ځان ۳
پاکيزه کوِي لکه چه دَي پاکيزه دَي ۴ هرڅوک چه خطا کوِي بي شرعي هم ۴
کوِي او خطا چه ده بي شرعي دَه ۵ او تاسو پوهيږئ چه دَي ظاهر شه ۵
تاچه خمونږ خطاوي يوسِي او په ده کښ خطا نشته ۶ هرڅوک چه په ده ۶
کښ اوسِي خطا نه کوِي هرڅوک چه خطا کوِي هغه ئي نه ليدلي نه ئي
پيژاندلي دَي ۷ اي فرزندانو هيڅوک دِ تاسي ونه غولوِي هغه څوک چه صداقت ۷
کوِي هغه صادق دَي لکه چه دي صادق دَي ۸ هغه څوک چه خطا کوِي ۸
له ابليسَ دَي ځکه چه ابليس له ابتدا خطا کوله دَ الله زوي دي دَپاره ظاهر
کړي شه چه دَ ابليس کارونه نيست کړِي ۹ هرڅوک چه له الله نه پيدا ۹
شوي دي خطا نه کوِي ځکه چه دَ هغه تخم په ده کښ اوسِي او دغه
نه توانيږي چه خطا وکړي ځکه چه له الله نه پيدا شوِي دِي ۱۰ او په دي سره ۱۰
دَ الله فرزندان او دَ ابليس فرزندان ظاهر کيږي هرڅوک چه دَ صداقت
عمل نه کوِي له الله نه دَي او نه هغه چه دَ خپل ورور سره محبّت نه کوِي
۱۱ ځکه چه دا هغه پيغام دَي چه له ابتدا مو واوريده چه مونږ دِ يو له بل ۱۱

۱۲ سره محبّت کوُو ۱۲ نه دَ قائن په شان چه له هغه شریره وه او خپل ورور
ئې ووژه او ځله ئې ووژه ځکه چه دَ هغه کار بد وه او دَ ورور ئې صادق وه
۱۳ ۱۳ اي ځما ورونړو که دنیا له تاسي سره کینه وکړي تعجب مه کوئ
۱۴ ۱۴ مونږ پوهیږو چه له مرګ نه ژوندانه ته کوچیدلي یو ځکه چه له ورونړو
۱۵ سره محبّت کوُو او هغه چه محبّت نه لري په مرګ کښ اوسي ۱۵ هرڅوک
چه له خپل ورور سره دُښمني لري خوني دَي او تاسي پوهیږئ چه هیڅ
۱۶ خوني ابدي ژوندون په خپل ځان کښ ساکن نه لري ۱۶ مونږ په دي سره
محبّت پیژنو چه ده ځمونږ دَپارَ خپل ځان کیښود او مونږ ته بایده دِي
۱۷ چه خپل ځانونه دَ ورونړو دَپارَ کښیدُو ۱۷ مګر هغه چا ځخه چه دَ
دُنیا مال وِي او خپل ورور حاجتمند ووینِي او خپل زړه سوي ور نه
۱۸ بند کړي نو محبّت دَ الله په هغه کښ څرنګ اوسي ۱۸ اي فرزندانو
مونږ دِ په خبري او په ژبي سره نه بلکه په عمل او په حق سره محبّت
۱۹ ولرُو ۱۹ او په دي سره به وپوهیږُو چه مونږ له حقه یُو او دَده دَ
۲۰ وړاندِ به خپل زړه تسلّي کړُو ۲۰ ځکه چه که ځمونږ زړه مونږ ملامت کړي
۲۱ نو الله ځمونږ له زړه نه لوي دَي او په هرڅه پوهیږي ۲۱ اي محبوبانو که
۲۲ ځمونږ زړه مونږ ملامت نه کړي نو دَ الله په نزد دَ ویلو واک لرُو ۲۲ او هرڅه
چه مونږ غواړو هغه له ده نه مُومُو ځکه چه دَده حکمونه ساتُو او هرڅه
۲۳ چه دَده خوښ وِي دَده دَ وړاندِ ئې کوُو ۲۳ او دَده حکم دا دَي چه مونږ
دَده دَ زوي یسوع مسیح په نامه ایمان راوړُو لکه چه مونږ ته ئې حکم
۲۴ راکړي یو له بله دِ محبّت کوُو ۲۴ او هغه چه دَده حکمونه ساتِي په ده کښ
اوسي او دي په هغه کښ او په دي سره مونږ پوهیږو چه په مونږ کښ
اوسِي له هغه روح نه چه مونږ ته ئې راکړي دَي ٭

## څلورم باب

۱ ۱ اي محبوبانو تاسي په هر یو روح باندِ ایمان مه راوړئ بلکه روحونه
وآزمایئ چه له الله دِي که نه ځکه چه ډیر دروغژن پیغمبران دُنیا ته

راوتلي دِي ۲ په دي سره به دَ الله روح وپيژنئِ هر روح چه اقرار کوِي چه ۲
يسوع مسيح په جسم کښ راغلي دَي دَ الله دَي ۳ او هر روح چه په ۳
مسيح اقرار نه کوِي دَ الله نه دي او دا دَ دَجّالُ المَسِيح روح دَي چه تاسي
اوريدلي دِي چه راځي او اوس هم په دُنيا کښ شته ۴ اي فرزندانو تاسو ۴
دَ الله يئِ او په هغه باندِ غالب شوی يئِ ځکه هغه چه په تاسي کښ دِي
له هغو نه چه په عالم کښ دِي زيات لوي دَي ۵ هغوي له عالمه دِي ځکه ۵
دَ عالم خبري کوِي او عالم ئي اوري ۶ مونږ دَ الله يُو هغه چه الله پيژني ځمونږ ۶
اوري هغه چه دَ الله نه دِي ځمونږ نه آورِي په دي سره مونږ روح دَحق
او روح دَ گمُراهئ پيژنُو

۷ اي محبوبانو مونږ دِ يو بل سره محبت کوُو ځکه چه محبّت دَالله دي ۷
او هر څوک چه محبّت کوِي لـه الله پيدا شوي دي او الله پيژني ۸ هغه څوک
چه محبّت نه کوِي الله نه پيژني ځکه چه الله محبّت دَي ۹ په دي کښ محبت دَ ۹
الله په مونږ ظاهر شه چه الله خپل يگانه زوي عالم ته اَستولي دَي چه
مونږ دَده په وسيلي ژوندِي شوو ۱۰ محبّت نه په دي کښ دَي چه مونږ له ۱۰
الله سره محبّت وکړ بلکه په دي کښ چه ده له مونږ سره محبّت وکړ او خپل
زوي ئي را واستاوه چه ځمونږ دَ گناهونو دَپارَ کفاره شِي ۱۱ اي محبوبانو ۱۱
هر کله چه الله له مونږ سره داسي محبّت وکړ نو مونږ ته هم بايده دِي
چه يو دَ بل سره محبّت وکړُو ۱۲ الله هيچا هيځکله په ځير سره ليدلي نه دَي ۱۲
نو که چري مونږ يو له بل سره محبّت کوُو نو الله په مونږ کښ اوسي او محبّت
ئي په مونږ کښ کامل شوي دي ۱۳ په دي سره مونږ پوهيږُو چه مونږ په ده ۱۳
کښ اوسُو او دَي په مونږ کښ چه ده له خپل روح نه مونږ ته راکړِي دَي
۱۴ او مونږ ځير کړي دَي او شاهدِي ئُو چه پلار خپل زوي رااَستولي دَي ۱۴
چه دَ دنيا خلاصونکي شِي ۱۵ هر څوک چه اقرار کوِي چه يسوع هغه ابن الله دَي ۱۵
نو هغه الله په ده کښ اوسي او دَي په هغه الله کښ ۱۶ او مونږ پيژنُو او ايمان ۱۶
مو راوړي دَي په هغه محبّت چه الله ئي په مونږ کښ لري الله محبت دَي او

هغه چه په محبت کښې اوسي په الله کښې اوسي او الله په هغه کښې اوسي
۱۷ ۱۷ په دې سره محبت په مونږ کښې کامل شوې دې چه دَ عدالت په ورځ دَ
۱۸ ویلو واک لرو ځکه لکه چه دې دې هسې مونږ په عالم کښې یو ۱۸ په محبت
کښې ویره نشته بلکه کامل محبت ویره بهر نه غورزوي ځکه چه ویره عذاب
۱۹ لري هغه چه ویرېږي په محبت کښې نه کامل کېږي ۱۹ مونږ دِ محبت کوو ځکه
۲۰ چه اوّل ده له مونږ سره محبّت وکړ ۲۰ که څوک وايي چه زه له الله سره
محبّت کوم او له خپل ورور سره کینه کوي دروغژن دې ځکه هغه څوک
چه له هغه خپل ورور سره محبّت نه کوي چه لیدلي ئې دې نو څرنګ توانېږي
۲۱ چه له هغه الله سره چه لیدلي ئې نه دې محبت وکړي ۲۱ او مونږ له ده دا
حکم لرو چه هغه څوک چه له الله سره محبت کوي نو له خپل ورور
سره دِ هم محبّت کوي ٭

## پنځم باب

۱ ۱ هرڅوک چه ایمان راوړي چه یسوع هغه مسیح دې نو له الله نه پیدا
شوې دې او هرڅوک چه له والد سره محبّت لري نو له مولود سره هم محبّت
۲ لري ۲ په دې پوهېږو چه مونږ دَ الله له فرزندانو سره هم محبّت لرو چه
۳ مونږ له الله سره محبّت لرو او دَده حکمونه ساتو ۳ ځکه چه دَ الله محبّت
دا دې چه مونږ دَده په حکمونو عمل وکړو او دَده حکمونه درانه نه دي
۴ ۴ ځکه هغه څوک چه له الله نه پیدا شوې دې عالم مغلوبه کوي او دا
۵ هغه غلبه دَه چه عالم مغلوبېږي یعني ځمونږ ایمان ۵ هغه څوک دې
چه عالم مغلوبوي مګر هغه چه ایمان راوړي چه یسوع دَ الله زوی دې
۶ ۶ دا هغه دې چه له اوبو او له وینو سره یعني یسوع مسیح: نه صرف له
اوبو سره بلکه په هغو اوبو او په هغو وینو سره او روح هغه دې چه
۷ شاهدي لي ځکه چه روح حق دې ۷ ځکه دري دي چه شاهدي لي روح او
۹ اوبه او وینې او دا دري په یوه کښې دي ۹ چه مونږ شاهدي دَخلقو قبلوو
نو شاهدي دَ الله زیاته لویه ده ځکه چه دَ الله شاهدي دا ده چه ده دَخپل

زوي په حق شاهدِي للي ده ۱۰ هغه چه په اِبنُ‌الله ايمان راوړِي په ۱۰
خپل ځان کښ شاهدِي لرِي هغه چه په الله ايمان نه راوړِي نو
دروغژن کړِي ئي دَي ځکه چه ده په هغي شاهديِ چه الله دَ خپل
زوي په حق کښ للي ده ايمان ئي را نه وړ ۱۱ او هغه شاهدِي دا ده چه الله مونږ ۱۱
ته ابدِي ژوندون راکړ او هغه ژوندون دَده په زوي کښ دَي ۱۲ هغه څوک چه زوي ۱۲
لرِي ژوندون لرِي او هغه چه دَ الله زوي نه لرِي ژوندون نه لرِي
۱۳ ما تاسي ته دا خبرِي ليکلي دِي تاچه وپوهيږِئ چه ابدِي ژوندون ۱۳
لرِئ هو تاسو ته چه دَ اِبنُ‌الله په نامه ايمان راوړِئ ۱۴ او هغه دَ ۱۴
ويلو واک دا دَي چه دَده په نزد ئي لرُو چه که مونږ دَده دَ ارادي په
موافق څه څيز سوال کوُو نو دَي څمونږ اورِي ۱۵ او که مونږ پوهيږُو چه ۱۵
دَي څمونږ اورِي هرڅه چه مونږ سوال کوُو نو مونږ پوهيږُو چه هغه
سوالونه چه مونږ له ده سوال کړِي وُو مونږ څخه دِي ۱۶ که چرِي څوک ۱۶
خپل ورور خطا کونکيَ دَ خطا ووينِي چه دَ مرګ سبب نه ده نو سوال
دِ وکړِي او الله به ژوندون ورکړِي هغو ته چه دَ مرګ دَپارَ خطا
نه کوِي خطا شته چه دَ مرګ دَپارَ ده زه نه وايم چه دَ هغي په باب
دِ سوال وکړِي ۱۷ هره ناراستِي خطا ده مګر داسي خطا شته چه ۱۷
دَ مرګ دَپارَ نه ده
۱۸ مونږ پوهيږُو چه هغه څوک چه له الله نه پيدا شوِي دِي ۱۸
خطا نه کوِي بلکه هغه پيدا شوِي له الله نه خپل ځان ساتِي او هغه
شرير ئي نه مسّه کوِي ۱۹ مونږ پوهيږُو چه له الله يُو او ټول عالم ۱۹
په شرير کښ پراته اوسِي ۲۰ او مونږ پوهيږُو چه ابن‌الله راغي او مونږ ۲۰
ته ئي دا پوهه راکړه چه هغه حق وپيژنوُ او مونږ په هغه حق کښ
يُو دَده په زوي يسوع مسيح کښ دا هغه حق الله دَي او ابدِي
ژوندون ۲۱ اي فرزندانو له بتانو نه خپل ځانونه وژغورِئ * ۲۱

# دویم خط دَیوحنّا

١ آ هغه سپین ږیري وغوره شوي میرمني او دَ هغې فرزندانو ته چه په راستي
محبت ورسره کوم او نه زه یواځي بلکه هغه ټول واړه هم چه حق پیژني -
٢ ٢ دَ هغه حق په سبب چه په مونږ کښ اوسي او تر ابده به راسره وي -
٣ ٣ فضل او رحم او سلامتي له الله پلاره او له یسوع مسیح زوي دَ پلار نه
دِ له مونږ سره وي په حق او په محبت سره
٤ ٤ زه ډیر خوشحال یم چه ما ځیني ستاسي له فرزندانو په حق کښ ګرزیدونکي
٥ وموندل لکه چه مونږ له پلاره حکم واخست ٥ او اوس اي میرمني له تا نه
غوارم نه چه نوي حکم درلیکم مګر هغه چه مونږ ئي له ابتدا لرو چه یو له
٦ بَل سره دِ محبت وکړو ٦ او محبت دا دي چه مونږ دَده په حکمونو موافق
چلیږو دا هغه حکم دَي لکه چه تاسي له ابتدا اوریدلي دَي چه تاسي په هغه
٧ کښ چلیږئِ ٧ ځکه چه ډیر ګمراه کوونکي عالم ته وتلي دِي چه اقرار نه کوِي
٨ چه یسوع مسیح په جسم کښ راغي دا دِي ګمراه کوونکي دَجّالُ المَسیح ٨ خپلو
ځانونو ته وګورئِ چه هغه کارونه چه مونږ کړي دِي ورک ئي نه کړئِ بلکه چه
٩ تاسو پوره بدل بیاموئِ ٩ هر هغه څوک چه پیشوائي کوِي او دَ مسیح په
تعلیم کښ نه اوسِي الله نه لرِي او هغه څوک چه په تعلیم کښ اوسِي
١٠ پلار او زوي هم لرِي ١٠ که څوک درشِي او دا تعلیم درنه وړِي په کور کښ
١١ ئي مه قبلوئِ او سلام مه ورته وائِ ١١ ځکه هغه چه سلام ورته
وائِ دَ هغه په بدو عملونو کښ ورسره شریک کیږئِ
١٢ ١٢ زه ډیري خبري لرم چه تاسو ته ئي ولیکم لیکن نه غوارم چه
په کاغذ او په سیاهي سره وِي امید لرم چه تاسو ته درشم او مخامخ
١٣ به ووایم تاچه خوشحالي ستاسو پوره شِي ١٣ ستا دَ غوره شوي
خور زامن تا ته سلام وائِي *

# دريم خط دَ يوحنّا

آ هغه سپين ږيرَي وګايُس محبوب ته چه زه په حقّ ورسره محبّت کوم ١
٢ اي محبوبه زه دُعا کوم چه ستا ځان په خير او عافيت کښې وِي ٢
لکه چه ستا روح په عافيت کښې دَي ٣ نو زه خوشحال شوم هرکله چه وروڼه ٣
راغله او ستا په حق کښې ئې شاهدِي راکړه هسي لکه چه ته په حق کښې
ګرزې ٤ له دي نه زياته لويه خوشحالي مِ نشته چه واورم چه ځما فرزندان ٤
په حق کښې ګرزِي
٥ اي محبوبه ته ايماندارِي کوې هرڅه چه ته له وروڼو او له مسافرانو ٥
سره کوې ٦ هغوي دَ کليسيا دَ وړاندِ ستا په محبّت شاهدِي ورکړه ته به ٦
ښه وکړې که چرې هغوي په هسي شان په وړاندِ روان کړې لکه چه لايق
دَ الله وِي ٧ ځکه چه دوي دَ هغه دَ نُوم دَپارَ وتلي دِي او له غير قومونو ٧
ئې هيڅ وا نه خستل ٨ نو مونږ ته بايده دِي چه داسي خلق قبول کړُو تا چه ٨
په حق کښې همخدمته شُو ٩ ما کليسيي ته څه ليکل مګر دِيا‌تروفِيس چه په ٩
دوي دَ سردارِئِ مينه کونکي دَي مونږ نه قبلوِي ١٠ دي دَپارَ چه زه درشم نو ١٠
دَده کارونه چه ئې په بدوخبرو جګ وهِي ياد به ئې کړم او په دي هم نه بس
کوِي بلکه په خپله وروڼه نه قبلوِي او هغه چه ئې قبلول غواړِي منع کوِي
ئې او له کليسيي نه ئې بهر شړِي ١١ اي محبوبه دَ بديِ اقتدا مه کوئِ بلکه دَ ١١
ښيګړي ځکه هغه چه ښيګړه کوِي له الله دَي او هغه چه بدِي کوِي الله ئې
ليدلي نه دَي ١٢ ديمتريُوس له ټولو او له حق نه په خپله هم شاهدِي مومِي ١٢
اوِ مونږ هم شاهدِي لُو او تاسي پوهيږئِ چه ځمونږ شاهدِي حقّه دَه
١٣ زه ډيرُ خيزونه لرم چه تا ته ئې درولېکم ليکن زه اراده نه لرم چه ١٣
په سياهِي او په قلمِ سره درولیکم ١٤ مګر اميد لرم چه زر به دِ ووينم ١٤
نو خوله په خوله به خبري سره وکړُو :: تا ته سلام : دوستان تا ته سلام
وايِي : ته دوستانو ته نوم په نوم سلام ووايه ❋

# عام خط دَ یهودا

۱ ١ یهودا مریَ دَ یسوع مسیح او ورور دَ یعقوب بللو شویو مقدّسانو ته
۲ په الله پلار کښ اودَ یسوع مسیح ساتلیو شویو ته ٢ رحم اوسلامتي او
محبّت دِ په تاسي باندِ زیات شي
۳ ٣ اي محبوبانو چه ما دَ هغه نجات په باب چه مونږ ټول په کښ
شریک یُو تاسو ته مِ دَ لیکلو ډیر کوشش وکړ ضرور مِ وګڼړل چه تاسو
ته دا نصیحت ولیکمِ چه دَ هغه ایمان دَپارَ چه یَوځل پاکانو ته سپارلي
۴ شوي دي جانفشاني وکړيُ ٤ ځکه چه ځني سړي په غلي‌غلي ننوتلي دي بي‌تقویٰ
چه پخوا په دي عذاب کښ لیکلي شوي وُو چه څمونږ دَ الله فضل په فاسقیٔ
سره بدلوي او له هغه یواځي خاونده اوڅمونږ له خداوند یسوع مسیح
نه منکر دي
۵ ٥ نوزه دا غواړم چه تاسي ته هغه ټوله خبره چه یو وار پرِخبر شوي یئ
دریاده کړم چه خداوند پس له هغه چه اِمّت يیٔ دَ مصر له زمکي خلاص
۶ کړي دَي بیا هغه چه ایمان يیٔ نه راوړ هلاک يیٔ کړل ٦ او هغه فرښتي چه خپل
حکومت يیٔ ونه ساته بلکه خپل میشتوګه يیٔ پریښوه دَعدالت دَپارَ تر لوي ورځي
۷ پوري په ابدِي زنځیرونو کښ دَ تیارِي دَ لاندِ ساتلِي شوِي دِي ٧ لکه سُدُوم
اوعموراه او ښا اوخوا ښهرونه چه دَ هغو په شان يیٔ خپل ځانونه زنا ته
ورکړل او په حرامي غوښي پسي شول دَ ابدِي اور په عذاب کښ زغمونکي شوِي
۸ دَ نورو دَپارَ عبرت شول ٨ په دي شان داخوب لیدونکِي هم جسم پلیتوِي او
۹ خاوندِي ناڅیزه ګڼړِي او مرتبي والوته کفر وایِي ٩ مګر میکائیل سرداره فرښته
چه دَ موسیٰ دَجُسّي دَپارَ له ابلیس سره بحث کوونکِي جګړیده نوده دومره
زړورتوب ونه کړ چه دَکفرحکم پرِ وکړِي بلکه وُيیٔ ویل چه خداوند دِ تا
۱۰ ملامت کړي ١٠ لیکن دوي په هغوڅیزونو چه نه يیٔ پیژنِي کفر وایِي اوهرڅه چه
دوِي په طبعه سره دَ بي‌زبانو حیوانانو په شان پیژنِي په هغوي کښ بخس کیږي

١١ ١١ هي هي په هغو باندِ څكه چه دوي دَ قاين په لاري تللي دي او دَ بلعام
په گمراهي كښ دَ مزدوري دَپارَ توي شوي دي او دَ قارون په مخالف ويلو كښ
١٢ هلاك شول ١٢ دوي ستاسي دَ محبت په ميلمستيا كښ ډوب غاړېي دي چه
له تاسي سره خوري شپانه چه بي ويري خپل ځانونه څروي بي اوبو وريځې دي چه
له بادونو وړلي شوي دي دَ مني بي ميوي وني دي دوه واره مړي شوي له بېخه
١٣ وكښلي شوي دي ١٣ تند موجونه دَ درياب دي چه دَ خپلي شرمندگۍ ځگ غورزوي
١٤ سيلاني ستوري دي چه ترهميشه پوري دَ هغو دَپارَ توره تياره ساتلي ده ١٤ خنوخ
هم چه له آدم نه اووم وه دَ دغو په باب ئي نبوت وكړ و ئي ويل چه گوره خداوند له
١٥ زرگونو زرگونو پاكانو خپلو سره راغي ١٥ تا چه دَ ټولو عدالت وكړي او ټول بي دينان
دَ هغو دَ بي دينۍ په ټولو كارونو چه دوي په بي ديني سره كړي دي او په ټولو
سختو خبرو چه بي دينو گنهكارانو دَ ده په مخالفت كښ ويلي دي ملامت كړي-
١٦ ١٦ دغه گنگوسيان او گله كونكي دي چه دَ خپلو شهوتونو په موافق گرزيدونكي
دي او دَ هغو خولي لوي پړسيدلي خبري كوي او دَ نفعي دَپارَ دَ مخونو تعظيم كوي
١٧ ١٧ ليكن تاسو اي محبوبانو دا خبري په ياد لرئ چه وړاندې ځمونږ دَ خداوند
يسوع مسيح له رسولانو ويلي شوي دي چه هغوي تاسو ته وويل چه په آخري
١٩ زماني كښ به ټوقيان وي چه دَ خپلي بي دينۍ په شهوتونو به تلل كوي ١٩ دا
٢٠ هغه دي چه بېليدونكي دي نفساني چه روح نه لري ٢٠ مگر تاسي اي محبوبو په
٢١ ډير پاك ايمان كښ خپل ځانونه بنا كړئ په رُوحُ القُدس كښ دُعا غواړئ ٢١ او خپل
ځانونه په محبت دَ الله كښ وساتئ او دَ ابدي ژوندون دَپارَ ځمونږ دَ خداوند يسوع مسيح
٢٢ ٢٣ دَ رحمت منتظر شئ ٢٢ او په څنو شكمنو رحم وكړئ ٢٣ او څني خلاص كړئ له اوره ئي وشكوئ
او په څنو له ويري رحم وكړئ او له هغه پوشاك نه چه له جسم نه داغدار شوي دي نفرت كوئ
٢٤ ٢٤ او س هغه ته چه قادر دي چه تاسي له پريوتلو ساتي او دَ خپل جلال په
٢٥ حضور تاسو په كامله خوشۍ سره بي عيب ودرولي شي ٢٥ واحد الله ته ځمونږ
دَ خلاصونكي په وسيلي دَ يسوع مسيح ځمونږ دَ خداوند جلال او بزرگي او قدرت
او اختيار دي له ازله اوس او تر ابدالاباده پوري وي-آمين ❋

# مکاشفات دَ یوحنّا لاهوتي

## اوّل باب

۱ ۱ مکاشفه دَ یسوع مسیح چه الله ده ته ورکړه تا چه دَ ده غلامانو
ته هغه خبري چه زر ئي کیدل ضرور دِي ښکاره کړي او ده دَ
خپلي فرښتي په وسیلي سره استولي خپل بنده یوحنّا ته ئي
۲ نقشه کړه ۲ هغه چه په کلام دَ الله او دَ یسوع مسیح به شاهدِئ
۳ باندي او په هرڅه چه ده ولیدل شاهدِي وکړه ۳ مبارک هغه
دَي چه لولي ئي او هغوي چه خبري دَ نبوّت اورِي او هرڅه چه په
دي کښ لیکلي دِي و ئي ساتِي ځکه چه وقت نژدي دَي
۴ ۴ یوحنّا هغو اوو کلیسیاؤ ته چه په آسیه کښ دِي فضل تاسو
لره او سلامتي له هغه نه چه شته او هغه چه وه او هغه چه راځِي
۵ او له هغو اوو روحونو چه دَ ده دَ تخت دَ وړاندِ دِي ۵ او له یسوع
مسیح نه چه امین شاهد او اوّل زیږیدلي له مړیو او سردار دَ بادشاهانو
دَ زمکي دَي حاکم او هغه لره چه له مونږ سره ئي محبّت وکړ او په
۶ خپلو وینو سره ئي مونږ ځمونږ له خطاؤ پریونځلو ۶ او مونږ ئي
بادشاهان او کوهینان په نزد دَ الله او پلار خپل کړلو هم هغه لره
۷ دِ تمجید او قوّت تر ابدالآبادَ پوري وِي آمین ۷ ګورئِ هغه له اوریځو
سره راځِي او هره سترګه به ئي وویني او هغه کسان هم چه دي ئي
سوري سوري کړل او ټول قومونه دَ زمکي به په ده باندي وير وکړي
هو آمین
۸ ۸ زه یم هغه الفا او اومګا خداوند الله وائِي هغه چه شته
۹ دَي هغه چه وه او هغه چه راځِي هغه چه قادرِ مطلق دَي ۹ زه یوحنّا
ستاسي ورور او شریک په تنګسیا او په بادشاهئِ او په صبر کښ

دَ یسوع مسیح زه په هغه تاپو کښې چه پتمس بللې شي دَپارَ دَ کلام
١٠ دَ الله او دَپارَ دَ شاهدِي دَ یسوع مسیح شوم ١٠ زه دَ خداوند
په ورځ په روح کښې شوم او له خپل وروستو مِ یو لوي آواز
١١ لکه دَ شپیلۍ واوریده و ئي ویل ١١ هر څه چه ته ئي وینې په کتاب
کښې ئي ولیکه او هغو اوو کلیسیو ته ئي واستاوه (یعني) افسس
ته او سمرنا ته او پرګامس ته او تواطیره ته او ساردیس ته او فلادلفیه
١٢ ته او لادیقیه ته ١٢ او زه دَ هغه آواز دَ کتلو دَپارَ چه له ما سره
ئي خبري کولي وګرزیدم او چه وګرزیدم نو اووه زرّین ډیوټونه مِ ولیدل
١٣ ١٣ او دَ هغو اوو ډیوټونو په منځ کښې یو دَ انسان دَ زوي په دود
چه تر ښنګري پورته په جامي آراسته وه او دَ سرو زرو سینه بند
١٤ ئي په تیو تړلي وه ١٤ او سر او ویښته ئي سپین وُو لکه دَ سپیني ورۍ
١٥ لکه واوره او سترګي ئي لکه دَ اور لمبه ١٥ او پښي ئي دَ صیقل کړي
شویو زیړو په شان چه په تناره کښې صاف کړي شوي وِي او آواز
١٦ ئي لکه دَ ګنړو اوبو آواز ١٦ او هغه په ښي لاس کښې اووه ستوري
لرل او له خولې ئي یوه دوه مخي تیره توره راوتله او مخ ئي داسي وه
١٧ لکه چه نمر په خپل قدرت کښې ځلیږي ١٧ او چه ما هغه ولید نو
پښو څخه ئي دَ مړي په شان پریوتلم نو ده خپل ښي لاس را باندِ
کیښود او راته و ئي ویل مه ویریږه زه یم هغه اول او هغه آخر
او هغه ژوندي او مړ وم او ګوره تر ابدالآبادَ پوري ژوندي یم او
١٩ دَ مرګ او دَ دوزخ کنجۍ ما څخه دي ١٩ هغه چه تا ولیدل او هغه چه
٢٠ دي او چه پس له دي کیدونې دي و ئي لیکه ٢٠ هغه راز دَ هغو
اوو ستوریو چه تا څما په ښي لاس ولیدل او هغه اووه زرّین
ډیوټونه هغه اووه ستوري چه دي دا دَ اوو کلیسیو فرښتي دي
او هغه اووه ډیوټونه اووه کلیسي دي ❊

# دویم باب

۱ ۱ دَ کلیسي و فرښتي ته چه په افسس کښ ده وليکه
دا هغه وايي چه په ښي لاس خپل ئي اووه ستوري نيولي دي او
۲ چه په مينځ دَ اوو زرينو ډيوټونو کښ ګرزي ۲ چه زه ستا کار او ستا
محنت او ستا صبر پيژنم او دا چه ته دَ بدانو برداشت کولي نه شي
او تا هغوي چه خپلو ځانونو ته رسولان وايي او نه دي و دِ آزمايل او
۳ دروغژن دِ ومونډل ۳ او ته صبر لري او ځما دَ نوم دَپارَ دِ برداشت وکړ
۴ او ستړي نه شوي ۴ مګر له تا سره يو خبره لرم چه تا اول محبّت خپل
۵ پريښود ۵ نو ته يد ياد کړه چه له کوم ځاي نه پريوتلي او توبه وکړه او
وړاندني کارونه کوه او که نه نو زه به زر درشم او که توبه و نه کړي
۶ نو ستا ډيوټ به له هغه ځاي نه لري کړم ۶ مګر ته دا لري چه دَ
نکلاتيانو له کارونو سره کينه لري چه زه هم له هغو سره کينه لرم
۷ ۷ څوک چه غوږونه لري وا دِ وري چه روح کليسياو ته څه وايي هغه
چه غالب شي زه به دا ورکړم چه دَ ژوندانه له ونې نه چه ځموږ دَ الله
دَ فردوس په مينځ کښ ده (ميوه) وخوري
۸ ۸ او دَ کليسي و فرښتي ته چه په سمرنا کښ ده وليکه
چه هغه چه اوّل او آخر دَي او مړوه او (بيا) ژوندي شه دا وايي
۹ ۹ چه زه ستا تنګسيا او خواري پيژنم (ليکن ته دولتمند يي) او کفر دَ
هغو چه ځانونو ته يهوديان وايي او نه دي بلکه دَ شيطان جمعت دي
۱۰ ۱۰ له هغو ځروونو چه ته پر درديدونکَي يي مه ويرېږه ګوره ابليس
غواړي چه څني له تاسي نه په قيدخاني کښ واچوي تا چه آزمايلي
شئ او تاسي لره به تر لسو ورځو پوري تنګسيا وي تر مرګ پوري ايماندار
۱۱ او سه نو زه به دَ ژوندانه تاج تا له درکړم ۱۱ څوک چه غوږونه لري وا دِ وري
چه روح و کليسياو ته څه وايي هغه چه غالب شي له دويمه مرګَ
به ازارولي نه شي

۱۲ ۱۲ او دَ کليسيي وَ فرښتي ته چه په پرګاسس کښ ده وليکه
۱۳ چه هغه چه تيره دوه مخي توره لرِي دا وايِي ۱۳ چه زه پيژنم چرته
چه ته اوسي هلته کښ دَ شيطان تخت دي او ته ځما نوم نيسي او
چه تا ځما له ايمانه انکار و نه کړ هم په هغو ورځو کښ چه انتپاس
ځما ايماندار شاهيد ستاسي په مينځ کښ چه هلته کښ شيطان اوسيِ
۱۴ قتل کړي شه ۱۴ ليکن لږ څه (خبره) در سره لرم چه ته په هغه
ځاي کښ هغه کسان لرِي چه دَ بلعام تعليم نيسِي چه ده بالق ته دِ
بنِي‌اسرائيلو دَ وړاندِ تيندک غورزول دَ بتانو قربانئِ خوړل او زنا کول
۱۵ وښول ۱۵ ته هم څني داسي کسان لرِي چه دَ نکلاتيانو تعليم نيسِي -
۱۶ ۱۶ پس توبه وکړه او که نه نو زه به زر درشم او له هغو سره به دَ
۱۷ خپلي خولي په توري جنګ وکړم ۱۷ هغه څوک چه غوږ لرِي وا دِ وريِ
چه روح کليسياو ته څه وايِي هغه چه غالب شِي زه به ورکړم چه
پټ من وخورِي او يوه سپين ګټيئ به ورکړم او په هغه ګټيئ باندي
نوي نوم ليکلي شوي چه هغه بي له اخستونکي هيڅوک نه پيژني
۱۸ ۱۸ او دَ کليسيي و فرښتي ته چه په تواتيرِي کښ ده وليکه
چه هغه ابن‌الله دا وايِي چه سترګي ئي دَ اور دَ لنبي په شان
۱۹ او پښي ئي دَ صيقل شويو زيړو په دود لرِي ۱۹ زه ستا کارونه او محبت
او ايمان او خدمت او صبر پيژنم او چه ستا وروستني کارونه له
۲۰ وړومبنيو ډير دي ۲۰ مګر تا سره دومره خبر لرم چه تا هغي ښځي يعني
يزَبلي ته چه خپل ځان ته پيغمبره وايِي پرِيږدِي چه ځما بندګانو ته
داسي ښوونه کوِي او غولوِي ئي چه زنا وکړِي او دَ بتانو قربانِي وخورِي
۲۱ ۲۱ او ما هغي ته يوه مده ورکړه چه توبه وکړِي او دي له خپلي زنا نه
۲۲ توبه کول و نه غوښتل ۲۲ ګوره زه هغه په بچاوني باندِ غورزوم
او هغوي چه له دي سره زنا کوِي په لوي تنګسيا کښ که چري دَدي
۲۳ له کارونو توبه و نه کړِي ۲۳ او دَ دي فرزندان به په مرګ سره قتل کړم

او ټولي كليسيي به پوه شي چه زه هغه لټونكي دَ گردو او دَ زړو يم
او زه به له تاسي نه هر يوه ته دَ هغه دَ كارونو په موافق وركړم
۲۴ مگر زه تاسي او هغو باقي خلقو ته چه په تواتيري كښ دي وايم هغه ۲۴
ټول چه دا تعليم نه لري او هغوي دَ شيطان ژوري نه پيژني لكه چه
وايي چه زه به په تاسي بل بار به وانه چوم ۲۵ مگر دا هغه څه ۲۵
چه لرئ ئي و ئي نيسئ تر هغه پوري چه زه راشم ۲۶ او هغه چه غالب ۲۶
شي او تر آخره پوري ځما كارونه وساتي نو زه به هغه ته په غير
قومونو باندي اختيار وركړم ۲۷ او هغه به ئي دَ اوسپني په امسا ۲۷
سره وڅروي لكه چه خاورين لوښي ريزريز كړي شي لكه چه ما هم
له خپل پلارَ موندلي دي ۲۸ او هغه ته به دَ صباح ستوري وركړم ۲۸
۲۹ هغه څوك چه غوږ لري وا دِ وري چه روح كليسياؤ ته څه وايي ۲۹

## دريم باب

۱ او دَ كليسيي و فرښتي ته چه په سارديس كښ ده وليكه ۱
چه هغه چه اووه روحونه دَ الله او اووه ستوري لري دا وايي
چه زه ستا كارونه پيژنم چه نوم دَ ژوندي لري او ته مړ يي ۲ بيدار ۲
اوسه او باقي څيزونه چه په مر كيدو دي مضبوط ئي كړه ځكه چه ما
ستا كارونه دَ الله دَ وړاندِ كامل موندلي نه دي ۳ نو ياد لره چه تا ۳
څرنګ موندلي او اوريدلي دي او وئي ساته او توبه وكړه پس كه ته
بيداري نه كوي نو زه به د غله په شان درشم او ته به خبر نه يي
چه زه به كوم ساعت درباندي درشم ۴ او ته په سارديس كښ څو ۴
تنه نومونه لري چه خپلي جامي ئي پليتي كړي نه دي او له ما سره به
په سپينو (جامو) كښ وګرزي ځكه چه دوي دَدي لائق دي ۵ هغه چه ۵
غالب شي سپيني جامي به ور واغوندولي شي او دَ هغه نوم به دَ ژوندانه
له كتاب محوه نه كړم او دَ خپل پلار دَ وړاندِ او دَده دَ فرښتو دَ
وړاندي به دَده په نوم اقرار وكړم ۶ هغه څوك چه غوږ لري وا دِ وري ۶

چه روح کلیسیاؤ ته څه وايي

۷ ۷ دَ کلیسیه و فرښتي ته چه په فلادلفیه کښ ده وليکه
دا وايي هغه چه پاک او برحق دي او دَ داؤد کُنجي لري هغه
چه پرانزي او هیڅوک ئي بندولي نه شي او هغه چه بندي ئي کړي
۸ او هیڅوک ئي پرانتلي نه شي ۸ چه زه ستا کارونه پيژنم (کوره ما ستا
دَ وړاندِ يوه پرانتلي دروازه ايښي ده او هغه هیڅوک بندولي نه شي)
څکه چه ته لږ قدرت لري او تا څما کلام و ساته او څما له نومَ
۹ دِ انکار و نه کړ ۹ کوره زه ورکوم هغوي چه له جماعتَ دَ شیطانَ
دِي چه څان ته يهوديان وايي او نه دِي بلکه دروغ وايي کوره دا
به وکړم چه هغوي به راشي او ستا دَ پښو دَ وړاندِ به سجده وکړي
۱۰ او پوه به شي چه ما ته محبوب کړي ۱۰ دي دَپارَ چه تا څما دَ صبر کلام
وساته زه به هم تا وساتم دَ هغه ازمایښت له ساعتَ چه په ټول
۱۱ عالم راتلونکي دَي تا چه دَ زمکي اوسیدونکي وازمايي ۱۱ کوره زه زر
راځم هغه چه ستا دِي و ئي نيسه دي دَپارَ چه هیڅوک ستا تاج وا
۱۲ نه خلي ۱۲ هغه چه غالب دَي زه به ئي دَ خپل الله په هیکل کښ
ستنه جوړ کړم او بيا به هغه هیچري باهر و نه وزي او زه به دَ
خپل الله نوم او دَ خپل الله دَ ښهر نوم يعني دَ نوي اورشليم نوم
چه څما دَ الله له حضورَ پاس له آسمانَ راکوزيږي او خپل نوي نوم
۱۳ به وربانده ولیکم ۱۳ هغه څوک چه غوږ لري وا دِ وري چه روح
کلیسیاؤ ته څه وايي

۱۴ ۱۴ او دَ کلیسیي و فرښتي ته چه په لاؤدکیه کښ ده ولیکه
دا وايي هغه آمين او امانتدار او برحق شاهد چه دَ الله دَ
۱۵ پیدايښت ابتدا دَي ۱۵ زه ستا کارونه پيژنم چه ته نه سوړ نه تود
۱۶ يي کاشکي چه ته سوړ يا تود وي ۱۶ نو دي دَپارَ چه ته شیر گرم يي
۱۷ نه سوړ نه تود زه به دِ زر له خپلي خولي ټي کړم ۱۷ دي دَپارَ

چه ته وايي چه زه دولتمند يم او مالدار شوي يم او دَ هيڅ شي
حاجت نه لرم او نه پوهيږي چه ته کم‌بخت او بدبخت او خوار او روند
او برمنډ يي ۱۸ زه تا ته دا مصلحت درکوم چه ته له ما نه په هغه شان ۱۸
سره زرَ چه په اور کښې کره شوي دي وپيره تا چه دولتمند شي
او سپيني جامي تاچه وا يئ غوندي او شرم دَ برمنډتوب دِ ظاهر
نه شِي او په خپلو سترګو رانجه پوري کړه چه بينا شي ۱۹ په هغو ۱۹
ټولو چه زه مينه کوم هغه سلامتَ او تنبيه کوم نو غيرت‌ناک شه
او توبه وکړه ۲۰ ګوره زه په دروازه ولاړ يم او ټکوم يئ که څوک زما ۲۰
آواز واورِي او دروازه پرانزِي نو زه به هغه ته ور ننه وځم او زه به
ورسره دَ نماښام خوراک وکړم او هغه به له ما سره ۲۱ هغه ۲۱
چه غالب شِي نو زه به ورکړم چه را سره زما په تخت کښيني لکه
چه زه هم غالب شوم او دَ خپل پلار سره دَ ده په تخت کښې ناست
يم ۲۲ هر څوک چه غوږ لرِي وادِ ورِي چه روح کليسياؤ ته څه وايِي ۲۲

## څلورم باب

۱ پس له دي مِ نظر وکړ او ګورئِ چه په آسمان کښې يوه دروازه ۱
وازه ده او اوّل آواز چه ما واوريده چه لکه دَ شپيلۍ چه راسره
يئ خبره وکړه ويل يئ چه دلته راوخيژه او زه به هغه درښکاره
کړم چه پس له دي به ضرور وشي ۲ نو دستي په روح کښې شوم ۲
او ګوره چه په آسمان باندي يو تخت ايښي وه او په هغه تخت باند
څوک ناست وه ۳ او هغه چه ناست وُه په شکل کښې دَ سنګِ ۳
يشم او دَ عقيق په شان وه او په ګردا ګرد دَ هغه تخت قوسِ قزح
په نظر کښې دَ زمرد په شان وه ۴ او دَ هغه تخت په ګرداګرد ۴
څليرويشت تختونه وه او په هغو تختونو باندِ څليرويشت سپين‌ږيري
ناست وُه چه سپيني جامي يئ آغوستي وي او په سرونو يئ دَ
سرو زرو تاجونه وُوه ۵ او له هغه تخت برېښنه او آوازونه او غړنبهار ۵

راوتل او اوه مشعلونه دَ اور سیځونکي دَ هغه تخت دَ وړاندې چه
٦ هغه اووه روحونه دَ الله دي ۶ او دَ تخت دَ وړاندِ دریاب دَ ښیښې
دَ بلور په شان وه او دَ تخت په مېنځ او دَ تخت په گرداگرد څلور
٧ حیوانان وُو چه وړاندِ او وروستو له سترگو ډک وُو ۷ او وړنبي حیوان
دَ زمري په دود وه او دویم حیوان دَ سخي په شان او دَ دریم
حیوان څهره دَ سړي غوندِ لرله او څلورم حیوان دَ الوتونکي عقاب
٨ په دود وه ۸ او هغو څلورو حیوانانو هر یوه شپږ وزر لرل او په
گرداگرد او دننه له سترگو ډک وُو او شپه او ورځ آرام نه کوِي
وايي چه قدّوس قدّوس قدّوس خداوند الله قادرِ مطلق چه وه
٩ او چه دَي او چه راتلونکي دَي ۹ او هرکله چه هغه حیوانان تمجید
او عزّت او شکر ورکوِي هغه ته چه په تخت باندي ناست دَي
١٠ هغه ژوندي چه تر ابدالآباد دَي ١٠ نو هغه څلیرویشت سپین ږیري
دَ هغه دَ وړاندي چه په تخت باندي ناست دَي پریوزِي او هغه ته
چه تر ابدالآباد ژوندي دي سجده کوِي او خپل تاجونه دَ هغه دَ
١١ تخت دَ وړاندِ اچوِي وايي ١١ چه اي څښتنه خداونده او الله هم ته
دَ تمجید او دَ عزّت او دَ قدرت لایق یي چه وائي خلي چه هم تا
ټول څیزونه پیدا کړل او هغه ستا په ارادې سره وشول او
پیدا کړي شول ❖

## پنځم باب

١ آ او ما دَ هغه په ښي لاس کښ چه په تخت ناست وه یو کتاب
ولید چه له دننه او له باهره لیکلي شوي او په اوو مُهرونو مُهر
٢ کړي شوي وه ۲ او ما یوه زوراوره فرښته ولیده چه په لوي آواز
سره ئي وعظ کاوه چه څوک دَدي لایق دي چه کتاب پرانزي او
٣ مُهرونه ئي خلاص کړي ۳ او دَ هیچا توان نه وه نه په آسمان کښ
نه په زمکي باندي نه تر زمکي دَ لاندي چه کتاب پرانزي او نه چه

ور ته نظر وکړي ۴ او ما ډیر وژړل ځکه چه هیڅوک لایق مونده ۴
نه شه چه کتاب پرانیزي او نه چه ور ته نظر وکړي ۵ او یو له ۵
هغو سپین‌بیریو راته ووِ مه ژاړه گوره هغه زمري چه له یهودا
له فرقي نه دي د داؤد له اصلَ غالب شوي دي چه کتاب او اوه
مُهرونه ئي پرانزي ۶ او ما وکتل چه د تخت او د څلورو حیوانانو ۶
په مینځ کښ او د سپین‌بیریو په مینځ کښ یو وري داسي ولاړ دي
لکه چه ذبحه کړي شوي دي هغه اووه ښکرونه او اووه سترگي لري
چه اووه روحونه د الله دي چه په ټول (روي) زمین استولي شوي
دي ۷ او هغه راغي او د هغه له ښي لاس نه چه په تخت ناست ۷
وه هغه کتاب ئي واخست ۸ او چه کتاب ئي واخست نو هغه څلور ۸
حیوانان او څلیرویشت سپین‌بیري د وري د وړاندي پریوتل او هر
یوه څخه ستار او زریني پیالي ډکي له خوشبوئي وي چه د پاکانو
دعا دي ۹ او چه یو نوي سندره ئي وبله او ویل ئي چه هم ته د ۹
کتاب د اخستلو او د هغه د مُهرونو د پرانتلو لایق یي ځکه چه
ته ذبحه کړي شوي او په خپلو وینو دِ مونږ د الله دپارَ له هري
فرقي او له ژبي او له امّتَ او له قوم نه وپیرودلو ۱۰ او مونږ دِ ۱۰
خمونږ د خداي دپارَ بادشاهان او کوهنان کړلو او مونږ به په زمکه
بادشاهت وکړو ۱۱ او ما نظر وکړ او د تخت او د حیوانانو او د ۱۱
سپین‌بیریو په گرداگرد مِ د ډیرو فرښتو آواز واوریــده او د
هغو شمار په لاکونو لاکونو او په زرگونو زرگونو وه ۱۲ او هغو په لوي ۱۲
آواز سره ویل چه هغه ذبح کړي شوي وَري لایق دي چه قدرت
او دولت او حکمت او قوّت او عزّت او تمجید او برکت واخلي ۱۳ او ۱۳
هر مخلوق چه په آسمان کښ او په زمکه باندِ او تر زمکه د لاندي
او هغه چه په قهرِ دریاب کښ دي او هغوي ټول چه په هغو کښ
دي وا بِر وریدل چه دا ئي ویل چه هغه لره چه په تخت باندي

ناست دَي او ورِي لوه دِ برکت اوِ عزّت او تمجید او قوّت تر ابدالآباد
١٤ پوري وِي ١٤ او څلورو حیوانانو ووېل امین او هغه سپین‌ږیري پرېوتل
او سجده ئي وکړه ٭

# شپږم باب

١ ١ اوچه ورِي یو له هغو اوو مهرونو پرانت نو ما ولید او له یوه
دَ هغو څلورو حیوانانو مِ واوریدل چه یو دَ غړېنهاري دَ آواز په
٢ شان وايي چه راشه ٢ او ما وکتل او ګوره یو سپین آس او هغه
چه وربانديِ ناست وه لینده ورځخه وه او تاج ورکړي شه او
غالب ووت او تاچه غلبه وکړي
٣ ٣ او چه دویم مهر ئي پرانت وا مِ وریدل چه دویم حیوان
٤ ویل چه راشه ٤ او یو بل سُور آس را ووت او هغه لره چه
وربانديِ ناست وه دا ورکړي شه چه صلحه له زمکي واخلي او دا
چه یو بل سره ووژني او یوه لویه تُوره ورکړي شوه
٥ ٥ او چه دریم مهر ئي پرانت وا مِ وریدل چه دریم حیوان
ویل راشه او ما وکتل او ګوره یو تور آس او هغه چه وربانديِ
٦ ناست وه په لاس کښ ئي تله لرله ٦ او دَ څلورو حیوانانو په مینځ کښ
مِ دَ یو آواز په شان واوریده چه ویل ئي چه یو سیر غنم په یوه
دینار او دري سیره اوربشي په یوه دینار او تیلو او شرابو ته ضرر
مه رسوه
٧ ٧ او چه څلورم مهر ئي پرانت دَ څلورم حیوان آواز مِ واوریده
٨ ویل ئي راشه ٨ او ما وکتل او ګوره یو زیړ آس او هغه چه پربانديِ
ناست وه نوم ئي مرګ وه او دوزخ ورپسي ځي او هغه ته چه په
څلورمه حصّه دَ زمکي اختیار ورکړي شه چه په تُوره او په
قحط او په مرګ او دَ زمکي په وحشیانو ئي مړه کړي
٩ ٩ او چه پنځم مهر ئي پرانت نو تر قربانګاه دَ لاندي مِ دَ

هغو ځانونه وليدل چه دَ الله دَ كلام دَپارَ ووژلي شول او دَ هغي
ګواهئِ دَپارَ چه ئُي لرله ١٠ او په لوي آواز سره ئُي ناري كړلي و ئُي ١٠
ويل چه اي خاوندَ اي پاكه او برحقه ته به تر كومَ پوري عدالت نه
كوي او دَ زمكي له اوسيدونكيو به ځمونږ دَ وينو بدله نه اخلي ١١ او ١١
هر يوه ته له هغو سپيني جامي وركړي شوي او ورته وويلي شول
چه لږ څه دِ نور هم آرام وكړي تر هغه پوري چه دَدوي همبندګان
او وروڼړه چه دَدوي په شان به ووژلي شي پوره شي
١٢ او چه ما وكتل شپږم مُهر ئُي پرانت او لويه زلزله شوه ١٢
او نمر دَ وړيو دَ شړئِ په شان تور شه او ټوله سپوږمئِ دَ وينو
په دود شوله ١٣ او دَ آسمان ستوري دَاسي په زمكه پريوتل لكه چه ١٣
دَ انځير ونه خپله كچه ميوه اچوي هغه وقت چه له لويه بادَ
خوځولي شي ١٤ او آسمان دَ ملاتفي په څير لري كړي شه او هر ١٤
غر او ټاپو له خپل خپل ځاي نه وخوځولي شول ١٥ او بادشاهانو ١٥
دَ زمكي او غټانو او سردارانو او دولتمندانو او قوتناكو او هر مريي
او هر آزاد خپل ځانونه په غارونو او دَ غرونو په ړښو كښ پټ
كړل ١٦ او غرونو او ړښو ته ئُي ويل چه په مونږ باندي را پريوزئ ١٦
او پټ مو كړئِ دَ هغه له څيري نه چه په تخت باندِ كښيني
او دَ وري له غضب نه ١٧ ځكه چه دَده دَ غضب لويه ورځ راغله ١٧
او څوك ودريدلي شي ❊

# اووم باب

١ او پس له دي نه مې څلور فرښتي وليدي چه په څلورو كونجو ١
دَ زمكي ولاړي وي او څلور بادونه دَ زمكي ئُي ونيول تا چه په
زمكه باد وانه لوزي او نه په درياب او نه په هيڅ ونه باندِ ٢ او ما ٢
يوه بله فرښته چه له نمرخاته نه را وختله وليدله چه وزځنه
دَ ژوندي الله مُهر وه او دغي هغو څلورو فرښتو ته چه دا

ورکړي شول چه زمکي او درياب ته ضرر ورسوي په لوړ آواز سره
۳ ني ناره کړه او وئي ويل ۳ چه نه زمکي ته او نه درياب ته او نه
ونو ته ضرر رسوئ ترهغه پوري چه مونږ دَ الله دَ بندګانو په تندو
۴ باندِ مهر و نه لګوو ۴ او ما شمار دَ مهر کړيو شويو واوريده چه
دَ بني اسرائيل له ټولو فرقو نه يو سل څلور څلويښت زره مهر
کړي شول،

۵ دَ يهوداه له فرقي نه دولس زره مهر کړي شول
دَ رؤبين له فرقي نه دولس زره
دَ ګاد له فرقي نه دولس زره
۶ دَ آشير له فرقي نه دولس زره
دَ نفتالي له فرقي نه دولس زره
دَ منسّي له فرقي نه دولس زره
۷ دَ شمعون له فرقي نه دولس زره
دَ لاوي له فرقي نه دولس زره
دَ يساکر له فرقي نه دولس زره
۸ دَ زبولون له فرقي نه دولس زره
دَ يوسف له فرقي نه دولس زره
دَ بنيامين له فرقي نه دولس زره مهر کړي شول

۹ پس له دې مِ وکتل او ګوره چه يو لوي ټولي چه هيڅوک ئي
ګنړلي نه شي له هره قومَ او له فرقو او له امتو او له ژبو نه دَ
تخت دَ وړاندِ او دَ وري دَ وړاندِ ولاړ سپيني جامي اغوستي دَ کجورو
۱۰ ښاخونه په لاسونو کښ ۱۰ او په لوي آواز سره ئي ناري وهلي او
ويل ئي چه نجات څمونږ الله ته چه په تخت باندي ناست دَي او
۱۱ وري ته ۱۱ او ټولي فرښتي دَ تخت او دَ مشرانو او دَ څلورو
حيوانانو په ګردا ګرد ولاړي وي او دَ تخت دَ وړاندِ پړمخي پريوتي او

۱۲ الله ته ئي سجده وکړه او وئي ويل آمين ۱۲ برکت او تمجيد او حکمت
او شکر او عزّت او قدرت او قوّت دِ تر ابدالآباد څمونږ الله ته
۱۳ وي آمين ۱۳ او يوه له سپينږيرو خواب راکړ ما ته ئي وويل هغوي
۱۴ چه سپيني جامي اغوستي دِي څوک دِي او له کومه راغلل ۱۴ او ما
هغه ته وُوِ اي خداونده ته پوهيږې او هغه راته وُوِ دا هغوي
دِي چه له لوي تنکسيا راغلي دِي او هغو خپلي جامي دَ ورِي په وينو
۱۵ پريولخلي او سپيني ئي کړي ۱۵ دي دَبارَ دَ الله دَ تخت دَ وړاندي دِي او
دده په هيکل کښ ورځ او شپه دَده عبادت کوي او هغه چه په تخت
۱۶ باندي ناست دَي په هغو به خپله ډيره وکړي ۱۶ دوي به بيا وږي نه
شي او نه به بيا تږي شي او بيا به نمر ور باندي پري نه وزي نه
۱۷ هيڅ ګرمي ۱۷ ځکه چه هغه وري چه دَ تخت په مينځ کښ دَي دوي
به وڅروي او دوي ته به دَ ژوندانه دَ اوبو وچينو ته رهنمائي وکړي
او الله به دَ هغو دَ سترګو ټولي اوښکي پاکي کړي ÷

## اتم باب

۱ آ او هرکله چه اووم مهر ئي پرانت په آسمان کښ نژدي ترنيم ساعت
۲ خاموشي شوه ۲ او ما هغه اووه فرښتي چه دَ الله دَ وړاندِ ودريدلي
وليدلي چه دوي ته اووه شپيلئ ورکړي شولي
۳ ۳ او يوه بله فرښته راغله قربانګاه ځخه ودريده او يو زرّين
بخوردان ورځخه‌وه او ډيره خوشبوئي ورکړي شوه تاچه دَ ټولو پاکانو
له دُعاو سره په زرين قربانګاه باندِ چه دَ تخت دَ وړاندي دي زيات کړي
۴ ۴ او دَ خوشبوئيو لوګي دَ پاکانو له دُعاو سره دَ فرښتي له لاس نه دَ الله
۵ دَ وړاندي وخوت ۵ او فرښتي بخوردان واخست او دَ قربانګاه له اور
نه ئي ډک کړ په زمکه باندي ئي واچاوه نو غرمبهار او آوازونه او
برقونه اوزلزله شول
۶ ۶ او هغو اوو فرښتو چه اووه شپيلئ ورځخه وي خپل ځانونه

لي تيار كړل چه شپيلۍ وغږوي
٧ ٧ او وړنبئ شپيلۍ وغږوله او ږلۍ او اور له وينو سره ګډ
شول او په زمكه باندِ واچولي شول او دريمه دَ زمكي وسوه او دريمه دَ
ونو وسوله او واړه شنه واښه وسول
٨ ٨ او دويمي فرښتي شپيلۍ وغږوله او لكه لوي غر په اور سوي
په درياب كښ واچولي شه او دريمه حصه دَ درياب ويني شوه
٩ ٩ او دَ هغه مخلوق دريمه چه په درياب كښ ژوندون لرِي مړه
شول او دريمه دَ بيړيو خرابه شوه
١٠ ١٠ او دريمي فرښتي شپيلۍ وغږوله او يو لوي ستوري لكه سونكي
مشعل له آسمانَ پريوت او په دريمه حصّه دَ رودونو او دَ اوبو
١١ په چينو راپريوت ١١ او دَ ستوري نوم اَفسَنتِين بللي شي او دَ اوبو
دريمه اَفسَنتِينَ شوه او ډيرَ سړيو له هغو اوبو نه مړه شول ځكه چه
ترخي شوي وي
١٢ ١٢ او څلورمي فرښتي شپيلۍ وغږوله او دريمه دَ نمر او دريمه
دَ سپوږمۍ او دريمه دَ ستوريو وهلي شول تر دي حده چه دريمه
ئي تاريكه شوه او دريمه دَ ورځي رڼا وركوله هم هسي شپي
١٣ ١٣ او ما وكتل او وا مِ وريدل چه يو عقاب دَ آسمان په مينځ
كښ الوت او په لوي آواز ئي ويل چه هئ هئ هئ دَ زمكي په
اوسيدونكيو په سبب دَ باقِي آوازونو دَ شپيلو دَ هغو دريو فرښتو
چه په غږولو دِي +

## نهم باب

١ ١ او پنځمي فرښتي شپيلۍ وغږوله او ما يو ستوري چه له آسمانَ
وزمكي ته پريوتلي وه وليد او هغي ته دَ تهترين دَ كوهي كُنجي وركړې
٢ شوي وه ٢ او دَ تهترين كوهي ئي پرانت او له كوهي نه لوګي را وختوت
خو دَ لوي تناره دَ لوږي په شان او دَ كوهي له لوګي نه نمر او هوا

۳ تاریک شول ۳ او له لوګي نه په زمکي ملخان را ووتل او هغو ته اختیار
۴ ورکړی شه لکه چه دَ زمکي لړمان اختیار لري ۴ او هغو ته وویل شول
چه نه دَ زمکي وابښو ته او نه هیڅ شینکي ته او نه هیڅ وني ته ضرر
ورسوي مګر صرف هغو سړیو ته چه په تندیو باندِ دَ الله مهر نه لري
۵ ۵ او هغوي ته دا ورکړی شه چه دوي دي قتل نه کړي بلکه دا چه
تر پنځو میاشتو پوري په عذاب کښ ولرلي شي او عذاب دَ دوي لکه
۶ عذاب دَ لړم هرکله چه سړي ووهي ۶ او په هغو ورځو کښ به خلق
مرګ لټوي او نه به ئې مومي او دَ مرګ مشتاق به وِي او مرګ
۷ به ور نه تښتي ۷ او دَ هغو ملخانو شکلونه دَ هغو آسونو په دود
وُو چه دَ جنګ دَپارَ طیار کړي شوي دِي او دَ هغو په سرونو
لکه تاجونه دَ سرو زرو په شان او څهري ئې لکه څهري دَ سړیو
۸ ۸ او ویښته ئې دَ ښځو دَ ویښتو په شان ولرل او غاښونه ئې لکه
۹ دَ زمرو غاښونه وُو ۹ او زغري ئې لکه دَ اوسپني دَ زغرو په دود
او آواز دَ وزرو دَ هغو لکه آواز دَ ډیرو ګاډیو دَ آسونو چه جنګ
۱۰ ته زغلي ۱۰ او لکي ئې دَ لړمانو په شان لرلي او لیشي او اختیار دَ هغو
۱۱ په لکیو کښ وه چه تر پنځو میاشتو پوري سړي وآزاروي ۱۱ او دوي
فرښته دَ تهترین په څانو باندِ بادشاه لري دَ هغه نُوم په عبراني
کښ ابدون او په یوناني کښ نُوم اَپلیُون لري
۱۲ ۱۲ دا یو هَي تیر شه او ګوره چه پس له دي دوه نور هَي هیه
راځي
۱۳ ۱۳ او شپږمي فرښتي شپیلۍ وغږوله او ما دَ زرّیني قربانګاد
۱۴ له څلورو ښکرونو چه دَ الله دَ وړاندي دَه یو آواز واوریده ۱۴ چه
هغي شپږمي فرښتي ته چه شپیلۍ ورسره وه وئې ویل چه هغه
څلور فرښتي چه دَ فرات په لوي رود بندي کړي شوي دي خلاصي
۱۵ ئي کړه ۱۵ نو هغه څلور فرښتي خلاصي شوي چه تر یو ساعت او تر

یوي ورځي او تر یوي میاشتي او تر یو کالَ پوري طیاري کړي شوي
۱۶ وي تا چه دریمه حصّه دَ سړیو مړه کړي ۱۶ او دَ فوځونو دَ سوارو
۱۷ شمار دوه سوه زر زره وه او ما دَ هغو شمار واوریده ۱۷ او ما په
رؤیا کښ آسونه او هغوي چه وربانديِ ناست وه داسي ولیدل چه
اتشیي زغري او سنبلي او ګوګړي زرد لرلي او سرونه دَ آسونو
لکه سرونه دَ زمریو او دَ هغو له خولو نه اور او لوګي او ګوګړ راوتلي
۱۸ ۱۸ او له دغو دریو آفتونو (یعني) له اور او له لوګي او له ګوګړه
چه دَ هغو له خولو راووتل دریمه حصّه سړي قتل کړي شول-
۱۹ ۱۹ چه دَ هغو اختیار دَ هغو په خولو او په لکیو کښ وه ځکه چه
دَ هغو لکيُ دَ مارانو په شان وي او سرونه ئي لرل او په دغو
۲۰ ضرر رسوي ۲۰ او هغه باقي سړي چه له هغو آفتونو قتل کړي
نه شول دَ خپلو لاسونو له کارونو ئي توبه و نه کړه چه دَ دیوانو او
دَ سرو او دَ سپینو زرو او دَ زیړو او دَ کانړیو او دَ لرګي دَ بتانو
چه دَ لیدلو او دَ اوریدلو او دَ تللو توان نه لري سجده و نه کړي
۲۱ ۲۱ او هغو له خپلو خونونو او له خپلو جادوګریو او له خپلو زناوُ
او له خپلو غلاوُ توبه و نه کړه ÷

## لسم باب

۱ ۱ او بیا بله قوتناکه فرښته مِ ولیدله چه له آسمانَ راکوزیده
په اوریځ پوښیده او په سر ئي قوسِ قزح وه او ځیره ئي دَ نمر
۲ په شان او پښي ئي لکه ستني دَ اور ۲ او په لاس کښ ئي یو وړوکي
کتاب پرانتلي شوي لاره او هغي خپله ښي پښه په قهر دریاب او
۳ کیڼه په زمکه باندِ کیښودله ۳ او په لوي آواز لکه چه زمري غړمبیږي
ناري ئي وهلي او چه هغه ناري ووهلي نو هغو اوو غړمبهارو خپل
۴ آوازونه وویل ۴ او چه اوو غړمبهارو وویل نو زه په لیکلو ومه
لیکن له آسمانَ مِ آواز واوریده چه ما ته ئي ویل چه هغه څه

چه اووه غړنبهارو و ويل مهر ئي کړه او مه ئي ليکه ۵ او هغي فرښتي ۵
چه ما په درياب او په زمکه ولاړه وليده خپل لاس ئي دَ آسمان په
لوري پورته کړ ۶ او قسم ئي وکړ په هغه ژوندي چه ترابدالاباد دي ۶
چه آسمان او هغه څه چه په هغه کښ دِي او زمکه او هغه څه
چه په هغي کښ دِي او درياب او هر څه چه په هغه کښ دِي
پيدا ئي کړل چه پس له دي به وقت نه وِي ۷ مګر دَ اووِمي فرښتي دَ ۷
آواز په ورځو کښ هر کله چه هغه دَ شپيلۍ په غږونو وِي نو راز
دَ الله به پوره شِي لکه چه ده خپلو بندګانو نبيانو ته زيري ورکړي
دَي ۸ او هغه آواز چه ما له آسمانَ آوريده خبري ئي بيا راسره ۸
وکړي ويل ئي چه لاړ شه هغه کتاب واخله چه دَ هغي فرښتي په
لاس کښ پرانتلي شوي دَي چه په درياب او په زمکه ولاړه ده
۹ نو زه هغي فرښتي ته ورغلم ور ته مِ ووِ چه هغه ورکوتي کتاب ۹
راکړه هغي را ته وُوِ وا ئي خله او و ئي خوره او ستا ګيډه به ترخه
کړِي ليکن په خولي کښ به دِ دَ شهدو په دود خوږ وِي ۱۰ او ما ۱۰
هغه ورکوتي کتاب دَ فرښتي له لاس نه واخست و مِ خوړ او څما
په خولي کښ دَ شهدو په دود خوږ وُه او چه و مِ خوړ نو ګيډه
مِ ترخه شوه ۱۱ او ما ته وائِي چه تا ته لازم دِي چه بيا په ډيرو ۱۱
امّتونو او غير قومونو او ژبو او بادشاهانو نبوّت وکړي ✣

## يولسم باب

۱ او يوه درمه دَ همسا په شان ما ته راکړي شوه و ئي ويل چه ۱
پورته شه بيت‌الله او قربانګاه او هغه چه سجدي په کښ کوِي ګچ کړه
۲ مګر هغه غولي چه له بيت نه باهر دي وغورزوه او مه ئي ګچ ۲
کوِ ځکه چه هغه غير قومونو ته ورکړي شوي دي او هغوي به پاک
ښهر دوڅلويښت مياشتي پايمال کړِي ۳ او زه به خپلو دوو ۳
شاهدانو ته ورکړم او هغوي به شپږ زر دوه سوه

۴ شپیته ورځې به نبوت وکړي ۴ دا هغه دوه زیتونان او هغه دوه
۵ ډیوټونه دي چه دَ زمکې دَ خداوند دَ وړاندې ولاړ دي ۵ او که څوک
وغواړي چه هغو ته ضرر ورسوي نو دَ هغو له خولې نه اور راووزي
او دَ دوی دښمنان نغري او که څوک غواړي چه ضرر ور ورسوي
۶ نو ضرور دي چه دا رنګ ووژلې شي ۶ دوی اختیار لري چه آسمان
بند کړي چه دَ دوی دَ نبوّت په ورځو کښ باران ونه اوري او په
اوبو هم اختیار لري چه وینې ئې وګرزوي او هر وار چه اراده
۷ وکړي زمکه په هر قسم آفت ووهي ۷ او هرکله چه خپله شاهدي
پوره کړي نو هغه وحشي چه له تهترینَ راخیژي له دوی سره
۸ به جنګ وکړي او ورباندې به غالب شي او و به ئې وژني ۸ او
دَ هغو مړي به دَ هغه لوی ښهر په بازار کښ (وي) چه په
روحاني طور سره ورته سدوم او مصر بللې شي او هلته کښ
۹ خمونږ خداوند هم مصلوب کړې شه ۹ او خلق له امتونو او له
فرقو او له ژبو او له غیر قومونو دَ هغو مړیو ته دري نیمو ورځو
پورې ګوري او نه به ئې پریږدي چه دَ هغو مړي په قبرونو کښ
۱۰ کیږدي ۱۰ او دَ زمکې اوسیدونکي به په دوی باندې خوښي او
خوشحالي وکړي او یو بل ته سوغاتونه استوي ځکه چه دغو دوو
۱۱ نبیانو دَ زمکې اوسیدونکي په عذاب کړي وُو ۱۱ او پس له دري نیمو
ورځو روح دَ ژوندانه له الله نه په هغو کښ ننووت او هغوی
په خپلو پښو ودریدل او په هغوی باندې چه دوی ئې وکتل
۱۲ لویه ویره پریوته ۱۲ او هغو له آسمانَ لوی آواز واوریده چه
دوی ته ئې ویل چه دلته را وخیژئ نو په اوریځ کښ آسمان ته
۱۳ وختل او دَ دوی دښمنانو خیر کړل ۱۳ او په هغه ساعت کښ
لویه زلزله شوه او لسمه دَ ښهر پریوته او په هغې زلزلې کښ
اووه زره تنه مړه شول او نور چه وُو په ویره کښ شول او

دَ آسمان الله ته يَې جلال ورکړ
۱۴ ۱۴ دويم هئ تير شه ګوره چه دريم هئ زر راځي
۱۵ ۱۵ او اووم فرښتي شپيلئ وغږوله او په آسمان کښ
لوي آوازونه وشول ويل يَې چه بادشاهي دَ دنيا خمونږ دَ خداوند
۱۶ او دَده دَ مسيح شوي دَه او تر ابدالآباد به بادشاهي وکړي ۱۶ او
هغه څليرويشت سپين ږيري چه په خپلو تختونو باندي دَ الله
دَ وړاندِ ناست دِي پړمخ پريوتل او الله ته يَې سجده وکړه ويَې
۱۷ ويل ۱۷ چه مونږ ستا شکر کوو اي خداوندَ الله قادرِ مطلقَ
چه يي او چه وې ځکه چه تا خپل لوي قدرت واخست او بادشاهي
۱۸ دِ وکړه ۱۸ او قومونه په غضب شول نو ستا غضب راغي او وقت
دَ عدالت کولو دَ مړيو او چه خپلو بندګانو نبيانو او پاکانو او
ويريدونکيو دَ نوم خپل ته که وړوکي که لوي دي اجر ورکړي شي
او چه خراب کړي شي هغوی چه زمکه خرابوي
۱۹ ۱۹ او بيت الله په آسمان کښ پرانتلي شه او دَده په بيت
کښ دَده دَ وعدي صندوق وليدلي شه او برقونه او آوازونه
او غړبهاري او زلزله او لوي ږلئ وشول *

## دولسم باب

۱ ۱ او يوه لويه نخښه په آسمان کښ وليدلي شوه يوه ښځه په
نمر پوشيده او سپوږمئ دَ هغي تر پښو دَ لاندي او په سر يَې
۲ دَ دولسو ستوريو تاج ۲ او هغه بارداره وه او دَ لنګانه په
۳ درد او دَ زيږولو په عذاب کښ يَې ناري کولي ۳ بيا يوه بله نخښه
په آسمان کښ وليدلي شوه او ګوره يو لوي سُور اژدها چه
اووه سرونه او لس ښکرونه يَې لرل او په سرونو يَې اووه تاجونه
۴ وُو ۴ او دَ هغه لکي دَ آسمان دَ ستوريو دريمه حصّه راکاږله
او په زمکه يَې وغورزوله او اژدها دَ هغي ښځي دَ وړاندِ چه په

لنګانه وه ودريده تا چه هر کله چه هغه وزيږوي نو فرزند ئي
۵ ونغړي ۵ او هغي نر فرزند وزيږاوه چه د اوسپني په امسا به ټول
غير قومونه وڅروي او د هغي فرزند د الله او د ده د تخت په لوري
۶ راکاږلي شه ۶ او ښځه بيابان ته چه هلته کښ ئي له الله نه
تيار کړي شوي ځاي لاره وتښتيدله تا چه هلته تر يو زر دوه سوه
شپيته ورځو پوري ئي پرورش وکړي
۷ ۷ او په آسمان کښ جنګ وشه ميکائيل او فرښتي ئي له
۸ اژدها سره وجنګيدلي او اژدها او فرښتو ئي جنګ وکړ ۸ او زورآور
نه شول او پس له دغه ئي ځاي په آسمان کښ وصندلي نه شه
۹ ۹ او لوي اژدها وغورزولي شه هغه زوړ مار چه ابليس او
شيطان بللي شي هغه چه ټوله دنيا غولوي زمکي ته وغورزاوه شه
۱۰ او فرښتي ئي ور سره وغورزولي شوي ۱۰ او ما لوي آواز واوريده
چه په آسمان ئي ويل چه اوس خلاصي او قدرت او بادشاهي
خمونږ د الله او اختيار ذده ذ مسيح شه ځکه چه هغه تهمت لګونکي
خمونږ په ورونړو چه شپه او ورځ ئي خمونږ د الله د وړاندي په
۱۱ دوي باندي تهمت کاوه وغورزولي شه ۱۱ او دوي د وري د وينو په
وسيلي او د خپلي شاهدئ د خبري په وسيلي په هغه غالب شول
۱۲ او له خپل ځان سره ئي تر مرګه پوري مينه ونه کړه ۱۲ دي د پاره
اي آسمانونو او په هغه ديره کونکو خوشحالي کوئ هي هي په وچي
او په تنهر درياب ځکه چه ابليس تاسي ته درکوز شوي دي او لوي
غضب لري ځکه چه دي پوهيږي چه لږ وقت لري
۱۳ ۱۳ او هر کله چه اژدها وليدل چه زمکي ته وغورزاوه شه
۱۴ نو ده هغه ښځه چه نارينه ئي وزيږاوه ورپوله ۱۴ او دوه وزر د
لوي عقاب هغي ښځي ته ورکړي شول تا چه د هغه مار له مخي نه
په بيابان کښ خپل مقام ته والوزي چه هلته کښ د ده پرورش

يوه زمانه او تر دوو زمانو او تر نيمي زماني پوري کيږي ١٥ او مارله ١٥
خپلي خولي نه په ښځي پسي درود په دود اوبه وغُرزولي تا چه
رود اخستلي ئې کړي ١٦ او زمکي دَ ښځي مدد وکړ او زمکي خپله ١٦
خوله پرانتله او هغه رود چه اژدها له خپلي خولي غورزولي وه
ونغړد ١٧ او اژدها په ښځي باندِ په غضب شه او لاړ شه چه ١٧
دَدي له باقي اولاد سره چه دَ الله حکمونه ساتي او دَ يسوع مسيح
شاهدِي لرِي جنک جوړ کړي ❊

# ديارلسم باب

١ او هغه دَ درياب په شګي باندي ولاړ وه ١
او يو وحشي مِ وليد چه له قهرِ درياب را وخوت چه لس
ښکرونه او اووه سرونه ئې لرل او دَده په ښکرونو لس تاجونه
او په سرونو ئې دَ کفر نومونه وُو ٢ او هغه وحشي چه ما وليد ٢
دَ بوَر په دَود وه او پښي ئې دَ يږ غوندِ او خوله ئې دَ زمري دَ
خولي په شان وه نو اژدها خپل قدرت او خپل تخت او لوي اختيار
ورکړ ٣ او يو دَ هغه له سرونو نه لکه ذبح کړي شوي دَ مرګ دپارَ ٣
ليکن زخم دَ مرګ ئې جوړ شوي وُه او ټولي زمکي په هغه
وحشي پسي تعجب وکړ ٤ او هغوي هغه اژدها ته چه وحشي ته ئې ٤
اختيار ورکړ سجدَه وکړه او وحشي ته ئې هم سجده کوله ويل ئې
چه څوک ددغه وحشي په شان دَي څوک ورسره جنګيدلي شي؛
٥ او يوه خوله چه لوي خبري ئې کولي او کفر ئې وايه ده ته ورکړي ٥
شوه او اختيار ورکړي شه چه تر دوه څلويښتو مياشتو کار کوي ٦ او ٦
ده خوله په کفر ويلو په الله پرانتله تا چه دَده په نوم او دَده
په مسکن او په هغو چه په آسمان کښ ډيره کونکي دَي کفر ووايِي
٧ او هغه ته دا ورکړي شه چه له پاکانو سره جنګ جوړ کړي ٧
او وربانديِ غالب شي او په هري فرقي او امّت او ژبي او غير قوم

ده ته اختیار ورکړي شه ۸ او د زمکي ټول اوسیدونکي به ده ته سجده ۸
وکړي هغه چه نوم ئي له بنا د عالم نه د ذبح کړي شوي وري د ژوندانه
په کتاب کښ لیکلي شوي نه دي ۹ هغه څوک چه غوږ لري وا دِ وري ۹
۱۰ که څوک بندول کوي بند ته به لاړ شي او که څوک په توري قتل ۱۰
کوي ضرور به په توري قتل کړي شي دلته کښ دي صبر او ایمان د
پاکانو

۱۱ او یو بل وحشي مي ولید چه له زمکي را وخوت او د وري ۱۱
په دود ئي دوه ښکرونه لرل او د اژدها غونده ئي خبري کولي ۱۲ او په ۱۲
ټول اختیار د هغه وړنبي وحشي د هغه د وړاندي کار کوي او
داکوي چه زمکه او اوسیدونکي ئي د هغه اول وحشي چه د
مرګ زخم ئي جوړ شوي وه سجدي وکړي ۱۳ او لوي نخښي کوي تر ۱۳
دي حده چه د سړیو د وړاندِ له آسمان په زمکي باندِ اور راکوزوي
۱۴ او د هغو نخښو په وسیلي چه د کولو د پاره د وحشي د وړاندي ۱۴
ورکړي شوي اوسیدونکي د زمکي غولوي چه د زمکي اوسیدونکو ته وائي
چه هغه وحشي لره صورت جوړ کړئ چه د توري زخم ئي لاره او
ژوندي شه ۱۵ او هغه ته دا ورکړي شه چه د وحشي صورت ته ۱۵
روح ورکړي تا چه هغه صورت د وحشي خبري هم وکړي او هغه ټول
چه د وحشي صورت ته سجده نه کوي قتل کړي شي ۱۶ او هغه ټول ۱۶
وړوکي او لوي او دولتمند او خواران او آزاد او غلامان داسي کوي
چه په ښي لاس یا په تندي باندي یوه کرښه وله ورکوي ۱۷ او دا چه ۱۷
څوک د پیرودلو او د خرڅولو توان و نه لري بي له هغه چه کرښه لري
یا د حیوان نوم یا د هغه د نامه شمار ۱۸ دلته کښ حکمت دي ۱۸
هغه چه فهم لري د وحشي شمار دِ وشمیري ځکه چه هغه د
انسان شمار دي او د هغه شمار شپږ سوه شپږ شپیته
دي ÷

# څوارلسم باب

۱ او ما وکتل او گوره هغه وري دَ صيحون په غره باندي ولاړ وه ۱
او له ده سره يو سل څلور څلوېښت زره چه دَ هغو په تندو
باندي دَ ده او دَ هغه دَ پلار نوم ليکلې وه ۲ او ما له آسمانَ ۲
يو آواز واوريده لکه دَ ډېرو اوبو آواز او لکه دَ لوي غرنبهار آواز
او هغه آواز چه ما واوريده لکه دَ ستاريانو چه خپل ستارونه
وهي ۳ او هغو سندري ويلي لکه نوي سندري دَ تخت دَ وړاندِ او دَ ۳
څلورو حيوانانو او دَ هغو سپين‌ږيريو دَ وړاندي او بغير له هغو
يو سل څلور څلوېښت زره چه له زمکي پېرودلي شوي وُو هيڅوا
هغه سندري زده کولي نه شوي ۴ دا هغه دِي چه له ښځو سره ۴
پليت شوي نه دِي ځکه چه باکره دِي او دغه په وري پسي هرچرته
چه هغه درومي تلل کوِي دا هغوي دِي چه دَ سړيو له مينځ پېرودلي
شوِي دِي تاچه الله او وري لره وړمبني ميوه شي ۵ او دَ هغو په ۵
خولي کښ دروغ و نه موندلي شول ځکه چه دوی دَ تخت دَ وړاندي
بي عيب دِي

۶ او ما يوه بله فرښته وليده چه دَ آسمان په مينځ کښ الوتله ۶
او ابدي انجيل ئي لاره تاچه په کښيناستونکو دَ زمکي او په هر قوم
او فرقي او ژبي او امت زيري وکړي ۷ او هغي په لوي آواز ووِ چه ۷
له الله وويريږئ او جلال ورکوئ ځکه چه دَ ده دَ عدالت ساعت راغي
او هغه ته سجده کوئِ چه آسمان او زمکه او قهرِ درياب او چيني
دَ اوبو ئي جوړي کړي

۸ او په هغي پسي يوه بله فرښته راغله او ووئي چه پريوته ۸
پريوته هغه لويه بابله ځکه چه دي دَ خپلي زنا دَ غضب شراب
په ټولو قومو وڅښل

۹ او په هغو پسي يوه دريمه فرښته راغله او په لوي آواز ئي ۹

وبل چه هر څوک چه دَ هغه وحشي او دَ هغه صورت لره سجده
وکړي او دَ هغه کرښه په خپل تندي يا په خپل لاس باندِ قبوله
۱۰ کړي ۱۰ هغه به دَ الله دَ غضب شراب چه دَ ده دَ غضب په پيالي
کښ بي ګډونه آچولي شوي دي وڅښي او دَ پاکو فرښتو دَ وړاندي
۱۱ او دَ وري دَ وړاندِ به اور او به ګوګړ سره به عذاب کړي شي ۱۱ او
دَ هغو دَ عذاب لوګي تر ابدالآباد پورِ خيژي او هغه کسان چه
وحشي ته او دَ هغه صورت ته سجده کوي او هغه څوک چه دَ هغه
۱۲ دَ نوم کرښه قبلوي شپه او ورځ آرام نه لري ۱۲ دلته کښ دَ پاکانو
صبر دي دلته هغوي دي چه دَ الله حکمونه او دَ يسوع ايمان ساتي
۱۳ ۱۳ او ما له آسمانَ آواز واوريده و ني ويل چه وليکه مبارک
هغه مړي دي چه پس له دي به خداوند کښ مړي هو روح وائي
تاچه هغوي له خپلو محنتونو آرام مومي ځکه چه دَ دوي کارونه په
دوي پسي راځي
۱۴ ۱۴ او ما وکتل او ګوره يوه سپينه اوريځ او په اوريځ باندِ يو
دَ انسان دَ ځوي غوندي ناست وه چه په سر ني زرين تاج او په
۱۵ لاس کښ ني يو تيره لور وه ۱۵ او له هيکله يوه بله فرښته راووته
په لوي آواز سرهِ ني هغه چاته چه په اوريځي باندي ناست وه
ناري کړي چه خپل لور واستوه او وريبه ځکه دَ ريبلو ساعت راغي
۱۶ ځکه چه فصل دَ زمکي وچ دي ۱۶ نو هغه چه په اوريځي باندي ناست
وه خپل لور ني په زمکه ولګاوه او دَ زمکي فصل وريبلي شه
۱۷ ۱۷ او يوه بله فرښته له هغه هيکله چه په آسمان کښ دي
۱۸ بهر ووتله او دغي ځنه هم يو تيره لوروه ۱۸ او يوه بله فرښته له
قربانګاه نه بهر راووته چه په اور باندي ني اختيار لارد او هغي
ته چه تيرهِ لور ورځنه وه به لوي ناري ني ور ناره کړه و ني ويل
چه خپل تيرهِ لور واستوه او خوشي دَ تاک دَ زمکي ټولي کړه ځکه

۱۹ چه انګور ئې بښه پاښه شوه ۱۹ او فرښتي خپل لور په زمکه ولګود
او دَ زمکي تاک ئې ټول کړ ۲۰ دَ الله دَ غضب په لوي حوض کښ
ئې واچاوه او حوض له ښهره بهر پايمال شه او له حوض وښي
را ووتلي تر واګو دَ آسونو پوري په قدر دَ يوزر شپږ سوه غشو پرتاب

# پنځلسم باب

۱ او ما يوه بله نخښه په آسمان کښ وليده چه لويه او عجيبه
وه يعني اووه فرښتي چه هغه ورروستي اووه آفتونه ئې لرل ځکه
چه غضب دَ الله په هغو کښ پوره شه
۲ او ما دَ ښيښي يو دَ درياب غوندې له اور سره ګډ
وليد او هغوي چه په وحشي او دَ ده په صورت او دَ ده دَ نوم
په عدد غالب شوي وُو دَ ښيښي په درياب باندې چه دَ الله ستاروني
۳ ورغخه وُو ولاړ وُو ۳ او دَ الله دَ بنده موسيٰ سندري ئې ويلي
او سندري دَ وري او ويل ئې چه اي خداونده الله قادر مطلقَ
ستا کارونه لوي او عجيبه دِي اي دَ ابدالآباد بادشاه ستا لاري
۴ صادقي او برحقي دِي ۴ اي خداونده څوک به له تا نه نه ويرېږي
او ستا دَ نامه تمجيد به نه کړي ځکه چه ته يواځي قدُّوس يي
چه ټول قومونه به راشي او ستا دَ وړاندې به سجدي وکړي ځکه چه
ستا عدالتونه ظاهر شوي دِي
۵ او پس له هغه مې وکتل او ګوره دَ ګواهئ دَ خيمي هيکل
۶ په آسمان کښ پرانستلي شه ۶ او هغه اووه فرښتي چه اووه آفتونه
ورغخه وُو له هيکل نه را ووتلي او صاف دَ ځليدوني کتان پوشاک
۷ ئې آغوستي وه او زرين سينه‌بندونه ئې په سيني باندې تړلي وُو ۷ او
يوه له هغو څلورو ځناورو دَ سرو زرو اووه پيالي ډکي له غضب
دَ الله چه ترابدالآبادَ ژوندي دَي هغو اووه فرښتو ته ئې ورکړي
۸ ۸ او هيکل دَ الله له تمجيدَ او دَ ده له قدرت نه دَ لوګي ډک شه

او هیڅوک نه توانیده چه په هیکل کښی ننه وځي تر هغه پوري
چه دَ هغو اوو فرښتو هغه اوو آفتونه پوره شوي نه وِي *

# شپاړسم باب

١ آ او ما له هیکل نه یو لوي آواز واوریده چه هغو اوو فرښتو ته
ویل چه ځئ او دَ الله دَ غضب پیالي په زمکي توي کړئ
٢ ٢ او ورنبئ لاړه اوخپله پیاله ئې په زمکه توي کړه نو په
هغو سړیو کښی چه دَ وحشئ کرښه ورباندِ وه او په هغو کښی چه
دَ هغه صورت ته ئې سجده کوله بد او زبون ناسُور ورنه پیدا شه
٣ ٣ او دویمي فرښتي خپله پیاله په قهرِ دریاب کښی توي کړه
او هغه دَ مړي په شان وینی شوي او هر ژوندي ځان په قهرِ دریاب
کښی مړ شه
٤ ٤ او دریمي فرښتي خپله پیاله په رودونو او دَ اوبو په چینو کښی
٥ توبه کړه او وینی شولي ۵ او ما دَ اوبو له فرښتي نه واوریدل چه
دَ ئې ویل چه صادق ته یې هغه چه یې اوچه وې اي قُدّوسَ چه
٦ تا داسي حکم کړي دَي ٦ ځکه چه هغو دَ پاکانو او دَ نبیانو وینی توي
٧ کړي نو تا دَ ښښلو دَپارَ وینی ورکړي دِي چه دوي لایق دِي ٧ او ما
له قربانګاه نه واوریدل چه ویل ئې هو اي خداونده الله قادرِ مطلقَ
ستا عدالتونه برحق او صادق دِي
٨ ٨ او څلورمي خپله پیاله په نمر توبه کړه او هغي ته ورکړي
٩ شه چه سړي په اور سره وسیځي ٩ او سړي په لوي سوځیدني سره
وسول او دَ هغه الله په نامه چه په آفتونو اختیار لري کفر ئې
ووایه او توبه ئې ونه کړه چه دَده تمجید وکړي
١٠ ١٠ او پنځمي فرښتي خپله پیاله دَ وحشئ په تخت باندي توي
کړه او بادشاهت دَ هغه تاریک شه او هغوي دَ درد په سبب خپلي
١١ ژبي ژوولي ١١ او دَ خپلو دردونو او ناسُورونو په سبب ئې دَ آسمان

الله ته کفر وایه او له خپلو کارونو ئې توبه و نه کړه
۱۲ او شپږمي فرښتي خپله پیاله په لوي رود دَ فرات توي کړه ۱۲
او دَ هغه اوبه وچي شوي تا چه دَ نمرخاته دَ بادشاهانو لار تیاره
شي ۱۳ او ما دَ اژدها له خولي نه او دَ وحشي له خولي نه او دَ ۱۳
دروغژن پیغمبر له خولي نه دري ناپاک روحونه دَ چندخو په شکل
ولیدل ۱۴ چه دغه دَ نخښو کونکو دیوانو روحونه دي چه دَ ټولي دنیا ۱۴
په بادشاهانو ورووځي چه دوي دَ قادرِ مطلق الله دَ لوي ورځي دَ جنګ
دَپارَ جمع کړي ۱۵ ګوره زه دَ غله په دود راځم مبارک هغه دَي چه ۱۵
ویښ وي او خپلي جامي ساتي هسي نه وي چه دي برېنډ ګرزي او
خلق ئې شرم ووېني ۱۶ او ده هغوي یو ځاي ته چه په عبراني کښ ۱۶
آرمګدون بللي شي جمع کړل
۱۷ او اومي فرښتي خپله پیاله په هوا توئه کړه او دَ آسمان په ۱۷
هیکل کښ دَ تخت له لوري لوي آواز راووت و ئې ویل چه وشوه
۱۸ نو برقونه او آوازونه او غړېهار وشول او لويه زلزله شوه هسي ۱۸
چه له وقتَ چه سړي په زمکه باندي وشول شوي نه وَه داسي لويه
او سخته زلزله ۱۹ او هغه لوي ښهر دري حصي شه او دَ غیر قومونو ۱۹
ښهرونه پرېوتل او لوي بابل دَ الله دَ وړاندي یاد کړي شه تا چه
هغه ته دَ خپل غضب دَ غصّي دَ شرابو پیاله ورکړي ۲۰ او هر تاپو ۲۰
وتښتیده او غرونه موندلي نه شول ۲۱ او له آسمانَ په سړیو باندِ ۲۱
یو یو من غوندِ لويِ دِلِيِ پرېوتي او دَ دِلیو له آفتَ سړیو په الله کفر
وایه ځکه چه دَدَه آفت ډېر سخت دَي ✢

## اوولسم باب

۱ او یوه له هغو اووه فرښتو نه چه اووه پیالي ورځنه وي راغله او ۱
ما ته ئې خبري وکړي و ئې وي چه راشه زه به تا ته دَ هغي لوي کنچنئ
حکم چه په ګڼړو اوبو کښېنِي ښکاره کوم ۲ چه له دي سرهِ بادشاهانو ۲

دَ زمکي زنا وکړه او دَ خپلي زناکارۍ له شرابو دَ زمکي اوسيدونکي
۳ مست کړي شول ۳ او هغي زه په روح کښ بيابان ته يوړلم او
ما يوه ښځه په قرمزي رنګ وحشي باندِ ناسته وليدله چه دَ کفر
۴ له نومونو ډکه وَه او چه اووه سرونه او لس ښکرونه ئي لرل ۴ او
هغه ښځه په ارغواني او قرمزي جامي پوشيده وه او په سرو زرو
او په ګران بها کاڼو او په مرغلرو آراسته وه او دَ سرو زرو
کاسه ئي په لاس کښ وه چه دَدي دَ زنا له نجاستونو او له پليتيو
ډکه وه او په تندي ئي دا نوم ليکلي وُو راز لوي بابل دَ زمکي دَ کنچنو
۶ او دَ نجاستونو مور ۶ او ما وليدل چه هغه ښځه دَ پاکانو له
وينو او دَ يسوع دَ شهيدانو له وينو مسته شوي وَه او ما چه
۷ وليده په لوي تعجب سره مِ تعجب وکړ ۷ او هغي فرښتي راته وُوِ
چه ته ولي تعجب کوي زه به دَ هغي ښځي راز او دَ هغه وحشي چه
سورونکي ئي دَي او چه اووه سرونه او لس ښکرونه لري درته ووايم
۸ ۸ هغه وحشي چه تا وليد وه او اوس نشته او له تهترين به راختلو دَي
او هلاکت ته به لاړ شي او اوسيدونکي دَ زمکي به تعجب وکړي هغوي
چه نومونه ئي دَ ژوندانه په کتاب کښ له بنا دَ عالمَ ليکلي شوِي
نه دِي هرکله چه وحشي ويني چه ود او نشته او کيدوني دَي -
۹ ۹ دلته هغه ذهن دَي چه حکمت لري هغه اووه سرونه اووه
۱۰ غرونه دِي چه ښځه ورباندِ کښيني ۱۰ او اووه بادشاهان دِي پنځه
پريوتل او يو شته دَي او بل لا تر اوسه پوري راغلي نه دَي او چه
۱۱ راشي نو بايده دِي چه لږ څه پاتي شي ۱۱ او هغه وحشي چه ود او
نشته اتم هم هغه دَي او له هغو اوو دي او هلاکت ته ځي -
۱۲ ۱۲ او هغه لس ښکرونه چه دِ وليدل لس بادشاهان دِي چه
لا تر اوسه ئي بادشاهت موندلي نه دَي ليکن له وحشي سره به يو
۱۳ ساعت دَ بادشاهانو غوندِ اختيار واخلي ۱۳ دَ دغو ټولو هم يوه صلاح

ده او دوي به خپل قدرت او اختيار وحشي ته ورکړي ۱۴ دوي به ۱۴
له وري سره جنګ وکړي او وري به ورباندې غالب شي ځکه چه دې
د خداوندانو خداوند او د بادشاهانو سلطان دی او هغه چه له
ده سره دي بللي شوي او غوره او مؤمنان دي ۱۵ او ده را ته ۱۵
و وې هغه اوبه چه دې وليدلې چه هلته کښې کښېني اوسي امتونه
او ټولي او قومونه او ژبي دي ۱۶ او هغه لس ښکرونه چه تا وليدل ۱۶
او هغه وحشي نو دوي به له کنجني سره کينه وکړي او دا به ورانه
او برمنډه کړي او غوښې به ئې وخوري او به اور به ئې وسيځي۔
۱۷ ځکه چه الله د دوي په زړه کښې دا ورکول چه د ده صلاح په ۱۷
ځاي راوړي او هم صلاح شي او خپل بادشاهت وحشي ته ورکړي
ترهغه پوري چه د الله کلام پوره شي ۱۸ او هغه ښځه چه تا وليده ۱۸
هغه لوي ښهر دی چه د زمکي په بادشاهتونو بادشاهت کوي ❖

## اتلسم باب

۱ پس له دي مې يوه بله فرښته وليدله چه له آسمانه راکوزيدله ۱
او لوي اختيار ئې لاره او زمکه د هغي له جلاله روښانه شوه
۲ او هغي په سخت آواز سره ناره وکړه و ئې ويل چه لويه بابله ۲
پرېوتلي پرېوتلي ده او د ديوانو استوګنه شوله او د هر پليت روح
پناګاه او د هر يوه ناپاک او کرکه مرغه پناګاه ۳ ځکه چه ټولو قومونو ۳
د دي د زناکارئ د غضب له شرابو څښلي دي او د زمکي بادشاهانو
له دي سره زناکاري وکړه او سوداګران د زمکي د دي د عياشئ له
قوت دولتمند شول
۴ او ما له آسمانه يو بل آواز واوريده چه و ئې ويل چه اي ۴
خما امته له هغه راووزئ تا چه تاسي د دي په خطاؤ شريک نه شئ
او د دي له آفتونو څه وا نه خلئ ۵ ځکه چه د دي خطاوي له آسمانه ۵
سره ونښتلي او الله د دي ظلمونه يه ياد کړل ۶ بيرته ئې ورکړئ لکه ۶

چه دي درکړي دِي او دي ته دَ دي دَ کارونو په موافق دَ دوه چند دوه
چند ورکړئ په هغي جام کښ چه دي گډ کړي دِي دوه چند ور ته
۷ گډ کړئ ۷ هرڅو چه دي خپل ځان جلاور وکړ او عيش ئي وکړ
هم دومره دي ته عذاب او وِير ورکړئ ځکه چه دا په خپل زړه
کښ وايي چه زه شاه‌زادگئ ناسته يم او کونډه نه يم او وِير به
۸ و نه وينم ۸ دي دپاره به هم په يوه ورځ کښ دَ دي آفتونه راشي (يعني)
مرگ او وِير او قحط او دا به په اور وسيزلي شي ځکه چه خداوند
۹ الله چه دَ دي عدالت کوي زوراور دي ۹ او هغه بادشاهان دَ زمکي
چه له دي سره ئي زنا او عيش کړي دي هغه وقت چه دَ دي دَ
۱۰ سوزېدلو لوگي ووينې و به ژاړي او ټټر به پړ ووهي ۱۰ او دَ دي دَ
عذاب له ويري به لري ولاړ وِي وايي به هَي هَي بابله لوي ښهرَ
۱۱ هغه قوي ښهرَ چه په يو ساعت کښ ستا عدالت راغي ۱۱ او دَ زمکي
سوداگر به په دي باندِ وژاړي او وِير به وکړي ځکه چه بيا هيڅوک دَ دوي
۱۲ بار دَ جهاز نه پيروِي ۱۲ دَ جهاز بار دَ سرو زرو او دَ سپينو زرو
او دَ گران‌بها کاڼيو او دَ مرغلرو او دَ کتانو او دَ ارغوانو او دَ
ريښمينو او دَ قرمزِي او هر قسم دَ عودو لرگي او هر قسم دَ هاتي
دَ غاښ لوښي او هر رنگ لوښي دَ گران‌بها لرگي او دَ زېړو او دَ
۱۳ اوسپني او دَ مرمرو ۱۳ او دارچيني او حمامه او خوشبوئي او عطر او
لوبان او شراب او تيل او صافي ميدي او غنم او څاروِي او ميږي
۱۴ او (سوداگري) دَ آسونو او دَ گاډيو او دَ مريونو او دَ سرو دَ ځانو ۱۴ او
دَ ميني ميوي ستا دَ ځان دَ خواهش له تا نه لاړي او ټول ښاربه
او روښان څيزونه له تا نه ورک شول او بيا به ئي هيڅري و نه مومي
۱۵ ۱۵ دَ هغو څيزونو سوداگران چه .ور نه دولتمند شول دَ دي دَ عذاب
۱۶ دَ ويري په سبب به له لري ولاړ وِي ژړا او وِير به کوي ۱۶ او وبه وايي
هَي هَي هغه لوي ښهر چه په کتاني او ارغواني او په قرمزي پوشيده

وه او په سرو زرو او په گران بها کاڼو او په مرغلرو آراسته وه
ځکه چه په یوه ساعت کښ دومره لوي دولت برباد شه ١٧ او هر ١٧
خاوند دَ جهاز او هر هغه څوک چه چرته لاهو کیږي او ماڼګیان
او هغوي چه له قهرِ درياب سره کار لري لري ودريدل ١٨ او چه ١٨
دَدي دَ سوزيدلو لوګي ئي وليد ناري کولي او ويل ئي چه کوم يو دَدي
لوي ښهر په شان وه ١٩ او هغو په خپلو سرونو خاوري باد کړي او ١٩
په ژړا او په وير سره ئي ناري وهلي ويل ئي هَي هَي لوي ښهر چه
په هغه کښ هغوي ټول چه په قهرِ درياب کښ جهازونه لرل دَ
هغه له گران بهاؤ دولتمند شول چه دي په يوه ساعت کښ برباد
شه ٢٠ او اي آسمانَ او اي پاکانو او اي رسولانو او اي نبيانو په ٢٠
هغي باندي خوښي کوِئ ځکه چه الله له هغي نه ستاسي بدله په
عدالت سره واخستله

٢١ او يوي توانا‌کي فرښتي يو کاڼړي لکه لوي پل دَ ژرندي واخست ٢١
او په قهرِ درياب کښ ئي وَويشت او دا ئي ويل چه بابل هغه لوي ښهر
به هم په داسي زور سره ويشتلي شي او بيا به هيچري مونده نه شي
٢٢ او آواز دَ ستاريانو او دَ سرودګرانو او دَ شپيلئ او دَ ترنګ غږونکو ٢٢
به بيا په تا کښ وانه وريدلي شي او نه به يو کسب دَ هر قسم کسبګر
بيا په تا کښ مونډلي شي او دَ ميچن آواز به بيا په تا کښ وانه وريدلي
شي ٢٣ او نُور دَ ډيوي به بيا په تا کښ روښانه نه شي او نه به په تا کښ ٢٣
دَ زوم او دَ ناوي آواز وا وريدلي شي ځکه چه ستا سوداګر غټان دَ
زمکي وُو او ستا په جادو سره ټول قومونه ګمراه شول ٢٤ او په دي ٢٤
کښ ويني دَ نبيانو او دَ پاکانو او دَ هغو ټولو چه په زمکي قتل
کړي شول بيا موندلي شوي ٭

## نولسم باب

١ او پس له دي څيزونو مِ په آسمان کښ دَ ډير لوي ټولي غونډ ١

آواز واوریده چه ویل ئي چه هلّیلویاه نجات او تمجید او قدرت
۲ خښوند دَ خداوند الله دَي ۲ ځکه چه دَده عدالتونه حق او صادق
دِي چه ده دَ هغې لوي کنچنۍ چه په خپلي زناکارۍ سره ني زمکه
خرابه کړه عدالت وکړ او دَ خپلو بندګانو دَ وينو بدل ني دَ هغې له
۳ لاس نه بدله واخستله ۳ او هغوي دويم وار ويل هلّیلویاه او دَ
۴ هغې لوګي تر ابدالآباده پورې خيژي ۴ او څلیرويشت سپين ږيري
او څلور حيوانان پرمخې پرېوتل او الله ته چه په تخت ناست دَي
۵ سجده ني وکړه او وني وي آمين هلّیلویاه ۵ او له تخت يو آواز راووت
داني ويل چه تاسي خښوند الله ته ثنا کوئ اي ټولو بندګانو دَده او
۶ ويرېدونکو دَده که واړه که لوي يئ ۶ او ما دَ لوي ټولي غونډ آواز
واوریده او لکه دَ ډيرو اوبو آواز او لکه دَ زورآورو غرنبهارې
آواز چه داني ويل هلّیلویاه ځکه چه خښوند خداوند الله قادر مطلق
۷ بادشاهي کوي ۷ نو موږ دِ خوښي او خوشحالي وکړو او ده ته دِ تمجيد
ورکړو ځکه چه دَ ورې واده راغي او دَده ښځي خپل ځان تيار کړي
۸ دَي ۸ او ده ته دا ورکړي شه چه په ځليدونکي پاک کتان خپل ځان
۹ پوښيده کړي ځکه چه کتان هغه صداقتونه دَ پاکانو دِي ۹ او هغې
راته ووِ وليکه مبارک هغوي دِي چه دَ ورې دَ واده دَ نماښام خوراک
ته بللي شوي دِي او هغه راته وايي چه دا برحق کلامونه دَ الله دِي
۱۰ ۱۰ او زه دَده دَ پښو دَ وړاندِ پرېوتم چه ده ته سجده وکړم او ده
راته ووِ چه ګوره مه کوه چه زه له تا سره او ستا له هغو ورونړو
سره چه دَ يسوع شاهدي ورځنه ده غلام يم سجده الله ته کوه
ځکه چه شاهدي دَ يسوع دَ نبوّت روح دَي
۱۱ ۱۱ او ما آسمان پرانتلي وليد او ګوره يو سپين آس او هغه
چه ورباندِ ناست وه امين او حق بللي شوي او په صداقت سره
۱۲ عدالت کوي او جنګ کوي ۱۲ او سترګي ني لنبه دَ اور او په سر

باندِ ئي ډېر تاجونه وُو او يو ليکلي نوم ئي لاره چه هغه بي له ده
هيڅوا نه پېژاند ۱۳ او دَ وينو په څڅکاؤ شويو جامو پوشيده وه ۱۳
او نوم ئي کلمة الله دَي ۱۴ او هغه فوځونه چه په آسمان کښې وُو ۱۴
پوشيده په سپين او پاک کتان په سپينو آسونو (سواره) ورپسي شول
۱۵ او دَده له خولې نه يوه تيره توره راوزي چه دي قومونه پري ووهي ۱۵
او دَ اوسپني په امسا سره به ئي وڅروي او دَي د قادرِ مطلق الله
دَ غضب دَ قهر د شرابو حوض پايمال کوي ۱۶ او دَي په جامي ۱۶
او په ورانه خپل باندِ دا نوم ليکلي لري سلطان دَ بادشاهانو او
خداوند دَ خداوندانو

۱۷ او ما يوه فرښته په نمر ولاړه وليدله او په لوي آواز ئي ۱۷
ناره کړه او ټولو مرغانو ته چه د آسمان په مينځ کښې الوزي وئي
ويل چه راشئ او دَ لوي الله په ميلمستيا کښې سره جمع شئ.
۱۸ تاچه تاسي دَ بادشاهانو غوښي او دَ سردارانو غوښي او دَ ۱۸
قوتناکو غوښي او دَ آسونو او دَ هغو دَ سورو غوښي او دَ ټولو
غوښي که دَ آزاد که دَ غلام که دَ وړوکي که دَ لوي وي وخورئ

۱۹ او ما هغه وحشي او دَ زمکي بادشاهان او دَ هغو لښکري ۱۹
سره يوځاي شوي وليدل تاچه له هغه سره چه په آس سور
وه او دَ هغه له لښکر سره وجنګيږي ۲۰ او هغه وحشي ونيو شه ۲۰
او ورسره هغه دروغژن نبي چه دَ هغه دَ وړاندي ئي هغه
نښي وکړي چه په هغو سره ده هغه کسان چه دَ وحشي کونښه
ومونده ګمراه کړل او هغوي چه دَ هغه صورت ته ئي عبادت
کاوه دغه دواړه دَ هغه اور و ډنډ ته چه په ګوګړ سره بليږي
ژوندي واچولي شول ۲۱ او هغه چه باقي وُو نو دَ هغه آس ۲۱
دَ سواره له توري چه دَده له خولې راوتله قتل کړي شول او ټول
مرغان دَ هغو په غوښو ماړه شول ❊

# شلم باب

۱ آ او ما یوه ورښته ولیده چه له آسمانه راکوزیده دي په لاس
۲ کښې دَ تهتړین کُنجي لرله او یو لوي زنځیر ۲ او دي هغه اژدها
ونیوه یعني هغه زوړ مار چه ابلیس او شیطان دَي او تر زرو کالو
۳ پورې ئې بند کړ ۳ او دغه ئې په تهتړین کښې واچاوه او هغه
ئې بند کړ او مُهر ئې پرِ باندې ولګاوه تا چه بیا غیرِ قومونه و
نه غولوي تر هغه پورې چه هغه زرکاله پوره نه شي پس له دغه
بایده دِي چه تر لږو ورځو حلاص شي
۴ ۴ او ما تختونه ولیدل او هغوي ورباندې ناست او حکم
ورکړې شه او دَ هغو ځانونه مِ ولیدل چه دَ یسوع دَ ګواهۍ دپاره
او دَ الله دَ کلام دپاره سر پریکړي شول او هغوي چه نه ئې وحشي
تَه نه ئې دَ هغه صورت ته سجده وکړه او نه ئې دَ هغه کرښه په
خپلو تندو او په خپلو لاسونو وموندله او هغه ژوندي شول او تر
۵ زرو کالو پورې ئې له مسیح سره بادشاهي وکړه ۵ مګر باقي مړي
تر هغه پورې چه زرکاله پوره نه وُو ژوندي نه شول دا وړنبي قیامت
۶ دي ۶ مبارک او قُدُوس هغه دِي چه په وړنبي قیامت کښې برخه
لرِي په دغو باندې دویم مرګ هیڅ اختیار نه لرِي بلکه هغوي
به دَ الله او دَ مسیح کوهینان وِي او له ده سره به تر زرکاله پورې
بادشاهي وکړي
۷ ۷ او چه زرکاله پوره شي نو شیطان به له خپلې قیدخانې نه
۸ خلاص شي ۸ او وبه وزي تا چه هغو غیر قومونو ته چه دَ زمکې په
څلورو کونجو دِي یعني جوج او ماجوج وغولوي او دَ جنګ دپاره ئې
۹ سره ټول کړي او دَ هغو شمار لکه دَ قهرِ دریاب دَ شګې ۹ او هغوي
دَ زمکې په پلنوالي وخاته او دَ پاکانو دَ لښکر ځاي او عزتناک ښهر
۱۰ ئې ګیر کړ او له آسمانه اور راکوز شه او هغوي ئې وخوړل ۱۰ او

ابلیس چه دوي ئي غولول دَ اور او دَ گوگړ په ډنډ کښې واچاولې
شه چه هلته کښې وحشي او دروغژن نبي دِي او هغوي به شپه
او ورځ تر ابد الآباد پورې په عذاب کړي شي
۱۱ او ما یو لوي سپین تخت ولید او هغه چه ورباندِ ناست ۱۱
وه چه له مخ نه ئي زمکه او آسمان وتښتیدل او دَدوي دَپاره ځاي
مونده نه شه ۱۲ او ما مړي ولیدل لوي او وړوکي چه دَ تخت دَوړاندِ ۱۲
ولاړ وُو او کتابونه پرانستلي شول او یو بل کتاب چه دَ ژوندانه دي
پرانستلي شه او دَ مړیو عدالت لکه چه په هغو کتابونو لیکلي وه
دَ هغو دَ کارونو په موافق وشه ۱۳ او قهر دریاب هغه مړي چه په ۱۳
ده کښې وُو ورکړل او مرگ او دوزخ هم هغه مړي چه په کښې
وو ورکړل او دَ هر یوه عدالت دَ هغه دَ کارونو په موافق وشه
۱۴ او مرگ او دوزخ دَ اور په ډنډ کښې وغورزولي شول دا دویم مرگ ۱۴
دي (یعني) ډنډ دَ اور ۱۵ او که څوک دَ ژوندانه په کتاب کښې لیکلي ۱۵
و موندنه شه نو هغه دَ اور په ډنډ کښې وغورزولي شه ❊

## یوویشتم باب

۱ بیا مې یو نوي آسمان او زمکه ولیدل ځکه چه اوّل آسمان ۱
او اوّله زمکه تیر شوي دِي او قهر دریاب بیا نشته ۲ او ما پاک ۲
ښهر نوي اورشلیم له آسمان دَ الله له نزدَ راکوزیدونکي ولید
تیار کړي شوي لکه ناوي چه دَ خپل سړي دَپاره سنګاره شوي
وِي ۳ او ما له تخته یو لوي آواز واوریده چه ویل ئي چه گوره ۳
خیمه دَ الله له سړیو سره او دَي به له دوي سره ډیره وکړي
او دوي به دَده امت وِي او الله به په خپله له دوي سره وِي الله
دَ دوي ۴ او دَدوي له سترگو به ټولي اوښکي پاکي کړي او بیا به ۴
مرگ نه وِي او نه ویر او نه ژړا او نه به بیا درد وِي وړاندني څیزونه
تیر شول ۵ او هغه چه په تخت باندِ ناست وه وئي ویل چه گوره ۵

زه هر څه نوي کوم او وِئي ويل چه وليکه ځکه چه دا خبري
٦ اميني او برحقي دِي ٦ او هغه راته ووِ چه زه يم الفا او اُمِگا
ابتدا او انتها زه به هغه ته چه تږي دي دَ ژوندانه له چيني به
٧ وېړيا اوبه ورکړم ٧ هغه چه غالب شِي دَ دي وارث به شِي او زه
٨ به دَ هغه الله شم او هغه به ځما زوي وِي ٨ مګر دَ وېرېدونکو
او دَ بي ايمانو او دَ نجسانو او دَ خونيانو او دَ زناکارانو او دَ جادوګرانو
او دَ بت پرستانو او دَ ټولو دروغژنو برخه به په هغه ډنډ کښ وِي
چه په اور او په ګوګړ سوزِي دا دويم مرګ دَي
٩ ٩ او يوي له هغو اووو فرښتو چه ورځخه هغه اووه پيالي
له وروستيو اووو آفتونو نه ډکي وي ما ته راغله او راسره ئي
خبري وکړي و ئي ويل چه دلي راشه چه زه تا ته ناوي يعني دَ
١٠ وَرِي ښځه در ښکاره کړم ١٠ او زه ئي په روح يو لوي اوچت غره
ته يوړلم او ما ته ئي پاک ښهر دَ اورشليم راښکاره که چه له
١١ آسمانَ دَ الله له نزدَ راکوزيده ١١ چه جلال دَ الله ئي لاره دَ دغه
روښنائي دَ ډير ګران بها کاڼِي په شان لکه دَ بلورِي يشم کاڼي وه
١٢ ١٢ چه اوچت او لوړ ديوال ئي لاره دولس دروازي ئي لرلي او په
دروازو باندِ دولس فرښتي او نومونه ئي ليکلي شوِي وُو چه دَ
١٣ دولسو فرقو دَ بنِي اسرائيل دِي ١٣ دَ مشرق په لورِي دري دروازي
او دَ شمال په لورِي درِي دروازي او دَ جنوب په لوري دري دروازي
١٤ او دَ مغوب په لورِي دري دروازي ١٤ او دَ ښهر ديوال دولس بنيادونه
١٥ لرل او په هغه باندِ دَ وَرِي دَ دولسو رسولانو نومونه وُو ١٥ او هغه
چه له ما سره ئي خبري کولي جريب ئي لاره زرينَ دُرمه تا چه ښهر
١٦ اودَ هغه دروازي اودَ هغه ديوال کچ کړِي ١٦ او ښهر څلور کوټه
پروت وه او اوږدوالي ئي په قدر دَ پلنوالي او ښهر ئي په دُرمه سره
کچ کړِ دولس زره غشِي پرتابه (وُو) دَ هغه اوږدوالي او پلنوالي او

١٧ اوچتوالي سره برابر وُو ١٧ او هغه ديوال ئې ګچ کړ او يو سل څلور څلوېښت
١٨ هاتې دَ سړي په ګچ يعني دَ فرښتې ١٨ او بنياد دَ ديوال ئې دَ يشم
١٩ وه او ښهر دَ سوچه سرو زرو دَ صافې ښيښې په شان ١٩ او
دَ ښهر دَ ديوال بنيادونه په هر قسم ګران بها کاڼو آراسته کړې
شوي وه اوّل بنياد يشم دويم دَ نيلم دريم دَ شبچراغ څلورم
٢٠ دَ زمرد ٢٠ پنځم دَ سليماني شپږم دَ عقيق اووم دَ زبرجد اتم دَ جزع
نهم دَ طوپاز لسم دَ يماني يولسم دَ سنبلي او دولسم دَ ياقوت
٢١ وه ٢١ او دولس دروازې دولس مرغلرې وې هر يوه دروازه له يوې
يوې مرغلرې وه او دَ ښهر بازار دَ خالصو سرو زرو وه لکه
٢٢ دَ شفافې ښيښې ٢٢ او ما په هغه کښې هيڅ هيکل بيا ونه ليد
٢٣ ځکه چه خداوند الله قادر مطلق او وَرې دَ هغه هيکل دې ٢٣ او
هغه ښهر نه دَ نمر او نه دَ سپوږمۍ حاجت لري چه په کښې و
ځلېږي ځکه چه دَ الله جلال نوراني کړ او وَرَی ئې ډيوه ده -
٢٤ او هغه غير قومونه دَده په رڼا کښې به ګرځيږي او بادشاهان
٢٥ دَ زمکې به خپل جلال ده ته راوړي ٢٥ او دَ هغه دروازې به په
٢٦ ورځ کښې بندې نه شي (ځکه چه هلته به شپه نه وي) ٢٦ او
٢٧ دوي به دَ غير قومونو جلال او عزت ده ته راوړي ٢٧ او هيڅ پليت
شې به ورننه نه وزي او نه هغه چه نجس او دروغ عمل کوي بې
له هغو چه دَ وَرې دَ ژوندانه په کتاب کښې ليکلي شوي دي *

## دوه ويشتم باب

١ ١ او هغه ما ته يو صاف درياب دَ ژوندانه دَ اوبو ځلېدونکې
٢ لکه بلور راښکاره کړ چه دَ الله او دَ وَرې له تخت راوزي ٢ دَ هغه
بازار په مينځ کښې او دَ درياب دې خوا هغې خوا دَ ژوندانه ونه وه
چه دولس ميوې ئې نيولې او په هرې مياشتې کښې ئې خپله ميوه
٣ راوړه او دَ ونې پاڼې دَ غير قومونو دَ شفا دَ پاره دي ٣ او بيا به

هیڅ لعنت نه وِي او دَ الله او دَ ورِي تخت به په هغه کښې وِي او
۴ دده بندګان به دده عبادت کوِي ۴ او دده مخ به ووینِي او دده
۵ نوم به دَ هغو په تندو وِي ۵ او هلته به شپه نه وِي او هغوي
دَ ډیوي او دَ نمر دَ رڼا حاجت نه لرِي ځکه چه خداوند الله ئې منوّر
کوِي او دوي به تر ابدالآباد بادشاهي کوِي
۶ ۶ او هغه ما ته ووِ چه دا خبرې آمینې او برحقې دِي او خداوند
الله دَ ارواحونو دَ نبیانو خپله فرښته واستوله تا چه خپلو بندګانو
۷ ته هغه خبرې چه زر ئې پیښیدل ضرور دِي وښیي ۷ او ګوره زه
زر راځم مبارک هغه دَي چه ددي کتاب دَ نبوّت خبرې
وساتي
۸ ۸ او ما یوحنّا دا څیزونه واوریدل او ولیدل او چه ما
واوریدل او ولیدل نو دَ هغې فرښتې دَ پښو دَ وړاندِ چه دا ئې
۹ را ښکاره کړل سجدې کولو دَ پاره پریوتم ۹ او هغه ما ته وائي ګوره
مه کوه زه له تا او ستا دَ نبیانو ورونړو سره غلام یم او دَ هغو
(سرهِ) چه ددي کتاب خبرې ساتِي الله ته سجده وکړه
۱۰ ۱۰ او ما ته ئې ووِ چه ددي کتاب په خبرو مُهر مه لګوه
۱۱ ځکه چه وقت نژدې دَي ۱۱ هغه چه ناراست دَي بیا دِ ناراستي کوِي
او هغه چه پلیت دِي بیا دِ پلیت کړي شي او چه صادق دَي بیا دِ
۱۲ صداقت کوِي او هغه چه پاک دَي بیا دِ پاک کړي شي ۱۲ او ګوره
زه زر راځم او ځما اجر له ما سره دَي تا چه هر یوه ته دَ هغه
۱۳ دَ کار په موافق بدله ورکړم ۱۳ زه الفا او اُمګا ابتدا او انتها اول او
۱۴ آخر یم ۱۴ مبارک هغه کسان دِي چه خپلې جامې ئې ووینځلې تا چه
دَ ژوندانه په ونه ئې اختیار وِي او دوي به له هغو دروازو نه ښهر
۱۵ ته ننوزي ۱۵ چه سپي دَ باندِ دِي او جادوګران او زناکاران او خونیان
او بُت پرستان او هر څوک چه په دروغو مینه او عمل کوِي

١٦ ١٦ ما يسوع خپله فرښته دراستوله چه کليسيا ته ذدي خبرو
شاهدي تاسي ته درکړي زه يم هغه ولي او اولاد د داؤد هغه
ځلقيدونکي ستوري ذ صباح
١٧ ١٧ او روح او ناوي وايي راشه او هغه چه اوري و دِ وايي راشه
او هغه چه تږي دِي را دِ شي هر څوک چه غواړي اوبه ذ ژوندانه
دِ ويړيا واخلي
١٨ ١٨ زه هر يوه ته چه ذ دي کتاب ذ نبوت خبري اوري دا شاهدي
ورکوم چه که څوک په دغه څه زيات کړي نو الله به په ده باندي
هغه آفتونه زيات کړي چه په دي کتاب کښ ليکلي شوي دي -
١٩ ١٩ او که څوک ذدي نبوّت له کتابه څه لري کړي نو الله به ذهغه
بخره ذ ژوندانه له ونی نه او له ښهرِ مقدّس نه له ليکلو شويو
ذ دي کتاب نه لري کړي
٢٠ ٢٠ هغه څوک چه ذ دي حبرو شاهدي ورکوي وايي چه هو
زه زر راځم آمين راشه اي حداونده يسوع
٢١ ٢١ ذ خداوند يسوع مسيح فضل دِ له پاکانو سره وِي
آمين ❊

